# پښتو اکېډیمي لُغت

# PASHTO ACADEMY DICTIONARY
# (PASHTO TO PASHTO)


مؤلفین :

**ډاکټر خیال بخاري ......**

ترتیب او سمونه :

**پروفېسر ډاکټر نصرالله جان وزیر**



**پښتو اکېډیمي پېښور یونیورسټي**

# پښتو اکېډيمي لُغت

مؤلفين :

**ډاکټر خيال بخاري ،.....**

ترتيب و سمونه :

**پروفېسر ډاکټر نصرالله جان وزير**

**پښتو اکېډيمي پېښور يونيورسټي**

د پښتو اکېډيمۍ د مطبوعاتو سلسله نمبر ۲۶۷

| | | |
|---|---|---|
| د كتاب نوم | : | پښتو اکېډيمي لغت |
| مؤلفين | : | ډاکټر خيال بخاري، .... |
| ترتيب و سمونه: | | پروفېسر ډاکټر نصرالله جان وزير |
| | | ډائرېکټر، پښتو اکېډيمي پېښور يونيورسټي |
| كمپوزر | : | ارشاد خان (پښتو اکېډيمي) |
| چاپ شمېر | : | يو زر ټوکه (۱۰۰۰) |
| د چاپ کال | : | ۲۰۱۸ء/ ۱۴۴۰هـ |
| ايډيشن | : | اول |
| ناشر | : | پښتو اکېډيمي پېښور يونيورسټي خيبر پښتونخوا پاکستان |
| پرېس | : | فاسټ ټرېک کميونيکشن پېښور |
| بيعه | : | -/۲۵۰۰ روپۍ |

ISBN: ----------------------

دا لُغت د هائرايجوکېشن ډيپارټمنټ خيبر پښتونخوا په خصوصي مرسته او تعاون سره چاپ شوے . پښتو اکېډيمي پېښور پوهنتون په دې مرسته د صوبائي حکومت او د HED, Khyber Pakhtunkhwa منڼه کوي.

# پښتو اکېډيمي لُغت

له دې کرښو څخه مقصد د لغت ليکنې او لغت پوهنې په حواله بحث کول مقصود نۀ دي بلکې هغه پراونو ته يو نظر کتل دي تر کومو چې دغه لغت راتېر شوے او اوس په يوه نوې بڼه ستاسو مخې ته دے. خو تر هر څۀ د مخه غوره ګڼم چې په سر کښې د لغت پېژندنې او لغت ليکنې د اصولو او قواعدو په حقله لنډ شان بحث اوکړو.

" لغت نوم دے د سند وړ يو داسې کتاب چې اصطلاحي او لغوي نزاعات په کښې غوڅ شوي وي او د هغه پرېکړه " د پاے ټکي" حېثيت لري." (نياز فتح پوري ، مقاله : نوراللغات ....)

د يوې ژبې د پراختيا او پرمختيا د معيار تعين له دې څخه په اسانه کېږي چې د هغه ژبې د الفاظو ذخيره څومره ده او د هغه ژبې لغات او اصطلاحات د عصري علومو و فنونو او د ټولنې احساساتو او جذباتو سره موافقت لري او که نا. هغه ژبې چې د الفاظو لمن ئې پراخه او د زمانې سره د موافقت پېدا کولو صلاحيت لري ، هغه ژوندۍ او مترقي ژبې بلل کېږي . ددې په اړوند هغه ژبې چې د الفاظو پانګه ئې تيته ،د راکړې ورکړې استعداد په کښې کم او د اشتقاقاتو لمن ئې تنګه وي کمزورې او د ټيټې درجې ژبې بللې شي .

" د يوې ژبې د پراختيا او پرمختيا د معيار څۀ نه څۀ اندازه په هغه ژبه کښې د ټکيو پربمانه پانګه، علوم و فنون د پاره موزونيت او د ګرائمر مربوط نظام څخه کېږي ".

ژبه د قدرت له خوا انسان ته ورکړل شوې يوه عطيه ده چې د هغې په واسطه انسان د خپلو احساساتو او جذباتو يا مافي الضميراظهار په اسانه سره بل ته کوي . ژبه د الفاظو مجموعه ده او الفاظ هغه علامات يا اشارې دي چې له اصواتو نه راغول شوي وي . ژبه له ټولنې څخه ده او د ټولنې بقا او پرمختياد ژبې په بقا او پرمختيا پورې اړه لري . هم دغسې د ژبو يو تر بله بېلول د هغو د اصواتو څخه اخذ کړل شويو معناؤ او د هغو د ليک څرنګوالي سره تعلق لري . لُغت يا ټکي د انساني ژوند د ابتدا سره سم په وجود کښې راغلي . لُغت تر هغه په يوه ټولنه کښې پايي ، څو چې ټولنه د انتشار او فشار باعث نۀ وي ګرځېدلې . په دې حقله ډېرې خبرې کېدلے شي خو تر کومه چې د لغت پوهنې او لغت ليکنې تعلق دے ، دا نو:

"د يوې ژبې د ټکيو پانګه په ځانګړي ترتيب سره رايوځاے کول او د هغو د معناؤ بېلا بېل مفهوم د بشپړونې د معيار په ټاکلو کښې يو مرستندويه عمل دے . لغت پوهنه يا Lexicology او لغت ليکنه يا Lexicography پوهېدلو څخه مراد په هغو مسائلو او مباحثو ځان پوهول دي کوم چې د يوې ژبې په بره تګ و پرېوتون ياد هغې په بقا و فنا کښې مهم دي ".

**لغت لیکنې د پاره لازم شرائط :**

لغت پوهنه او لغت لیکنه د هر چا د وس کار نۀ دے ، بلکې دا هغه څوک کولے شي څوک چې د لغت پوهنې سره سره د ژبپوهنې ، قواعد پوهنې ، عصري علوم او د یو څو نورو ژبو متعلق ژور علم لري . د یو معیاري او کره لغت سازولو د پاره پکار ده چې لغت لیکونکے دداسې علاقو سره تعلق اولري چې د هغو ژبه سوچه ، صفا او عام فهم وي او لغت لیکونکے اهل زبان وي .د لغت لیکونکي په ذهن کښې دې دا خبره موجوده وي چې هغه د کومې طبقې د پاره او د کوم عمر خلقو د پاره لغت لیکي . لکه د ماشومانو د پاره ، د لوړو زدکړو د پاره ، دخواصو د پاره او که د عام خلقو د پاره . غرض د هرې طبقې یو مزاج وي او د هغوي د غوښتنو یو دائره کار وي . تر کومه چې د پښتو لُغت لیکنې تعلق دے نو په کار ده چې مونږ یواځې یوه لهجه یعني یوسفزۍ لهجه، ختیک / کرلاڼ لهجه ، ننګرهارۍ یا د قندهارۍ لهجې معیاراتو ته ځان مختص نۀ کړو. بلکې د ټولې پښتونخوا د لهجو په بنیاد کره، معیاري او اصیل ټکي راټول کړو.ددغو ټکیو رېښې دې د لغت پېژندنې د اصولو مطابق او د ګرائمري قواعدو تحت اول د لهجو تر مېنځه او بیا دې د پخوانیو اریائي ژبو لکه سنسکرت ، اوستا ، پارسي او نورو سره پرتله کولو پسته اختیار کړل شي . د پښتو په اکثرو لغاتونو کښې لیدل شوي چې د یو ټکي وضاحت ، تشریح او د معناؤ په ضمن کښې بې ضرورته محاورې ،متلونه ، شعرونه ، لنډۍ یا نثري اقتباسات ورته مخې ته راوړل کېږي ، دا ځکه چې هر ټکي د پاره د سند ضرورت وي . ددې افادیت په خپل ځاے خو کله چې په ژبه کښې یو ټکے یو ځل د معیار په توګه اومنل شي بیا نو ضرورت نشته ، چې هېڅ بې هېڅه د لُغت بار دروند کړو . ددې تر څنګ د پښتو لُغت جوړونې په لړ کښې یوه بله شدیده مسئله چې پښتو ته په شرق و غرب ، بره او کوزه خوا کښې یو شان ورپېښه ده هغه د کره و معیاري لیکدود نۀ اختیارولو مسئله ده . د پښتو اکثر لیکوالان او هم ځینې اِدارې خپلواک لیکدود ته فوقیت ورکوي ځکه پښتو کښې لاتراوسه د معیاري او واحد لیکدود په وړاندې مشکلات دي . کثرت د لهجو دراصل د یوې ژبې د ټکیو پانګه سوا کوي ، د هغو رېښې تر لرې پورې رسوي، دې سره ژبه کښې ښکلا او او معناؤ کښې رنګا رنګي پېدا کېږي . خو یاد ساتل پکار دي چې کثرت د لهجو ځان له افادیت لري او یوه معیاري ، علمي او ادبي لهجه منل و اختیارول بیا ځان ته یو ستر عمل دے . که مونږ د لهجوي مسائلو خبره کوؤ نو دا یواځې پښتو کښې نۀ ده بلکې د دنیاډېرې ژبې دا ستونځه لري ، خو هغوي ددې حل راایستلے او د وئیلو او لیکلو ژبه کښې ئې فرق ساتلے او د لیکدود یو غوره انداز ئې اختیار کړے . په هم دې اساس که مونږ غواړو چې پښتو دې پرمختیا اوکړي او هر چا دپاره دې د پوهې او لیکلو وړ ژبه شي نو به هم دغه اصول اختیارول وي . زمونږ د ژبې مرکزیت وحدت او ترقي په دې کښې ده چې د ۱۹۹۰ عیسوي کال د لیکدود پرېکړو ته احترام ولرو. خو یاد ساتل پکار دي چې د یوې معیاري لهجې د پاره د نورو ډېرو لهجو له مېنځه وړ نۀ دي پکار . بل د لیکدود په مسئلو کښې زیات نښلېدل هم نۀ دي پکار ځکه چې ددې حل له علماؤ او ژبپوهانو سره دے نۀ چې له هر لیکوال څخه . غرض څومره چې یو ټاکلے او معیاري لیک دود د ژبې په پرمختیا کښې مهم و بنیادي کردار لوبوي هم هغومره د هغې ژبې لهجې یو متحرک کردار ادا کوي .

تر کومه چې د یو غوره او کره لغت لیکنې د اصولو او قواعدو تعلق دے ، نو دې لړ کښې د اردو ژبې نومتو لیکوال (بابائے اردو) مولوي عبدالحق په خپل یو مضمون "اردو لغات اور لغت نویسي" کښې چې کوم توضیحات کړي هغه ډېر جامع او د لوړې درجې دي . یو څو ځانګړي نکات و معیارات په دې لاندې ډول ترې راخستل شوي .

"په يوکامل لغت کښې د هر ټکي متعلق دا ښودل به ضروري وي چې هغه کله او څۀ رنګه او په کوم شکل کښې (اردو) [پښتو] ته راغلے او پس له دې دا تر اوسه مهال په کومو پړاونو راتېر شوے. د هر ټکي رېښې څېړنې به کول وي . زمونږ په لغتونو کښې بالعموم د هر ټکي تعريف نۀ ورکول کېږي بلکې د هر ټکي مخې ته هغه مترادفات ليکل کېږي.د هغو ټکيو پرته د معني مطلوبه څو - څو مفاهيم وي . يو نابلده کس د پاره دا معلومول ګران شي چې دې کښې کوم يو مترادف تر کومه ددې ټکي هم معني دے . زمونږ زياتره لغت ليکونکي په دې خبره ټينګار ورکوي چې په لغت کښې دې مستند ، فصيح او کوم پرېوتے يا سپک ټکے نۀ وي . خو هغه حق نۀ لري چې په لغت کښې د نقاد کار ترسره کړي . هغه ته نۀ خو د ټکيو د انتخاب حق حاصل دے او نۀ د ټکيو د ښۀ والي او سپک والي . په لغت کښې هر رقم ټکي پکار دي که هغه مروج وي يا متروک او د هغو ټولې معناوې او استعمال درج کول لازم دي .د اکسفورډ ډکشنري جورونکيو دا دريغ لرلے چې ډکشنري د انسا ئيکلو پيډياڅخه په فرق کښې ساتل پکار ده . ځکه چې دا دواړه يو بل سره توپير لري . يوه ضروري خبره چې لغت ليکونکي لره ضروري ده هغه دا چې هر ټکي او محاروې د پاره دې سند وړاندې کوي . يواځې د ټکي تعريف و تشريح ورلره بس نۀ ده . بل دا چې د ټکي/ ټکيو په سمه توګه ادائيګي ته هم توجه ورکول ضروري دي . مهمه خبره دا چې تراوسه زمونږ څومره لغتونه ليکل شوي په هغو کښې اکثر داسې شوي چې يو د بل نه او بل د دريم نه نقل کړے او يو څۀ ئې پرې د پاسه لاځانه ورګډ کړي . هم دغه وجه ده چې زمونږ اکثر لغاتونه يو د بل تکرار او ورته والے لري . د نويو ټکيو لټون او شننه انتهائي ضروري ده . دې د پاره به مونږ ته هغه ټول مواد راغونډول وي کوم چې د ټکيو تعريف ، تاريخ ، د هغو استعمال او د هغو ترمېنځه حقيف فرق بنياد کښېښودل شوے وي . دغه ټول مواد به د [پښتو] چاپ او ناچاپ اثارو څخه اخذ کول وي . که څۀ هم دغه کار ډېر کړکېچن او پېچلے دے او د يو کس د وس کار هم نۀ دے . ځکه دې دپاره به د ايډيټرانو او د هغو د مرستيالانو ضرورت وي او نور هغه ټول وسائل لکه ضخيم کتب تونونه او دولتي مرسته ورلره لمړے شرط دے . دداسې کار د پاره د اکسفورډ ډکشنرۍ مثال ورکولے شو چې د هغې د تکميل په لړ کښې اويا کاله صرف شوي ، بې انتها مصرف ورباندې راغلے ،ددې د کار پوهانو شمېره ۱۳۰۰۰وه ، هغو د ۵۰۰۰ (پينځه زره) کتابونو څخه ۳۵۰۰۰۰۰(پينځه دېرش لکا) اقتباسات غوره کړل . دې کښې د تنخوادارو کسانو پرته په زرهاؤ کسانو د خداۍ خدمتګارانو په توګه کار کړے . [په پښتنو کښې لاداسې تصور نۀ دے قوي شوے خو که پښتانۀ هڅه اوکړي نو ناممکنه نۀ ده او حالات هم ورته موافق دي ، ځکه چې دا پېړۍ د پښتو او پښتنو ده بايد مونږ دا چانس ضائع نۀ کړو]".(اردو لغت نويسي ، تاريخ ، مسائل و مباحث مولف : ډاکټر عبدالروف پاريکه)

**د پښتو وړومبني لغتونه :** "دا سعادت د نواب محبت خان روهيله ، چې د مشهور و معروف حافظ رحمت خان روهيله زوي په برخه شو ، ...... دوي په اول ځل د "رياض المحبت" په نوم د پښتو ژبې لغت تيار کړو ، ...... دا لغت د پښتو نه په فارسي کښې دے " .

"د انګرېزانو په زمانه کښې دوؤ انګرېزانو مستشرقينو يعني مسټر راورټي او مسټر بېليو د پښتو انګرېزي لغتونه تيار کړل . د راورټي د لغت د تاليف کال ۱۸۶۰ او د بېليو د لغت د تاليف کال ۱۸۶۷ دے " .

په افغانستان کښې د وزير محمد ګل خان مهمند "پښتو سيند" او د پښتو ټولنې "پښتو قاموس" دواړه لغتونه پښتو ـ فارسي دي . په کوزه پښتونخوا کښې د بهادر شاه ظفر کاکاخېل "ظفراللغات" پښتو نه اردو کښې ليکل شوے لغت دے د چاپ نېټه ئې ۱۹۵۹ کال ده . دې نه علاوه د نړۍ په نورو ډېرو ژبو کښې د پښتو لغتونه ليکل شوي چې د هغو د بشپړ ذکر څخه ډډه کوؤ . تر کومه چې ددې لغت يعني "پښتو اکېډيمي لغت" تعلق دے

ددې ځانګړتیا په دې کښې ده چې دا لُمړے پښتو لغت دے چې د پښتو نه پښتو کښې لیکل شوے . ددې نه وړاندې چې څومره لغتونه لیکل شوي هغه په دوؤ ژبو یا د پښتو تر څنګ نورو ژبو کښې لیکل شوي .

د پښتو لغت لیکنې اصول او قواعد پېژندنې په حقله تر اوسه کوم داسې کار مخې ته نۀ دے راغلے چې هغه دې د لغت لیکلو تاریخې بهیر او اصولو و قواعدو بشپړ څېړنه اولري . البته په دې اړه د اروابناد څېړنپوه دولت محمد لودین کتاب " قاموس پوهنه " (چاپ ۱۳۹۵ ل کال ) چې د ختیځ خپرندویه ټولنه ، جلال کوټ ، افغانستان له خوا د محمد داود عرب زي په اهتمام خپور شوے د ذکر وړ کتاب دے . خو ددۀ تر مخه د لغت پوهنې او لغت لیکنې اصول و قواعد په حقله د اروابناد واسعي ځینې مقالې چې څۀ برخه ئې په کابل مجله کښې (۱۳۴۱ ل کال) چاپ شوې ده ، په پښتو ژبه کښې د قاموس پوهنې د اصولو بیانونکے او موسس په توګه یاد شوے (محمد داود عرب زی م - ۱) . ددوي تر څنګ ډاکټر روان هادي د (قاموس لیکنې عملي موضوعات، ۱۳۵۴ ل کال) او د ډاکټر عبدالحکیم هلالي (پښتو قاموس لیکنه، ۱۳۵۴ ل کال) یادولے شو. تر کومه چې د دولت محمد لودین د (قاموس پوهنه) تعلق دے دا غونډ درې فصله او په یوه ضمیمه مشتمل دے . ددې په اول فصل (اتۀ مخونه) کښې یو څۀ قدر د لغت پوهنې په اړه سرسري معلومات ورکړل شوي ، یو څو پاڼو کښې د قاموسونو ډولونه او پس له دې د تشریحي قاموسونو په اړه معلومات ورکړل شوي دي ، د سر دیارلس پاڼو نه پرته په نورو فصلونو کښې د بېله بېلو لغاتونو(ډکشنریانو) په حقله معلومات دي یعني دا کتاب هم په بشپړ ډول د سر موضوع په مطابق نۀ دے لیکل شوے .

پښتو ژبه (**پښتو اکېډيمي لغت**) : کله چې په ۱۹۵۵ عیسوي کال پېښور کښې پښتو اکېډیمي جوړه شوه نو ددې له وړومبني مهم کارونو څخه یو دا هم وو چې د پښتویو داسې لغت دې جوړکړے شي چې په هغه کښې د پښتونخوا د ټولو لهجو نمائندګي وي او ټولو پښتنو د پاره یو تاریخي او علمي حېثیت اولري . غالباً دا به د ۱۹۵۶زمانه وه چې پښتو اکېډیمي په دې مهم کار لاس پورې کړ . خو هغه وخت د اکېډیمي مالي او داخلي حالات دې ته مساعد نۀ وو چې ددې کار پوهان او استاذان دې په بېړوند توګه دا ستر کار سر ته اورسوي . ولې بیا هم هغوي د یوې قومي ذمه وارۍ په توګه په دې کار روان کړو. شروع کښې د مشرانو دا رائې وه چې یو درې ژبیز لغت یعني پښتو، اردو او انګرېزي شریک لغت دې تیار کړل شي پس له هغې دې د پښتو نه پښتو لغت تیار شي . خو دا ډېر کړېچن او سخت کار وو ځکه هغوي په دې پروژه کښې زیات مخکښې تګ او نۀ کړے شو . هغوي د ۱۳ کالو په موده کښې ایله قدر اویا ، اتیا مخه کار برابر کړے شو. وروستو کله چې میا سېدرسول د اکېډیمۍ ډائرېکټر شو نو هغۀ هاغه منصوبه په ځاے پرېښوده او دا عزم ئې اوښود چې تر څو مونږ د پښتو خپل لغت نۀ وي تیار کړے ، ممکنه نۀ ده چې وړاندې د پښتو او نورو ژبو لغت جوړ کړو. ځکه هغۀ له نوي سره دا کار پېل کړو او په ۱۹۷۰ کښې ددې جوګه شو چې وړومبے جلد" پښتو ژبه" په نامه چاپ کړي . دا نوم هم هغۀ ورته په خپله ټاکلے وو . دریغ ئې دا وه چې چونکې دا لغت د پښتو د بېلا بېلو لهجو په بنیاد راغونډ کړل شوے او ددې حېثیت نۀ یواځې د لغت بلکې د پښتو یو تاریخي دستاوېز او د انسائیکلوپیډیا حېثیت هم لري .خوبایډ یاد اساتو چې لغت او انسائیکلوپیډیا یو تر بله فرق لري .

ددې لغت پس منظر متعلق بناغلے سید رسول رسا لیکي چې :

"لوستونکیو ته به دامعلومه وي چې ددې ژبې لغت کار د پښتو اکېډیمي د اولنې ډائرېکټر محترم مولنا عبدالقادر مرحوم صاحب په وخت کښې شروع شوے وۀ. مولنا صاحب مرحوم د لغت په کار کښې بې حده زیاته دلچسپي اخسته او دا د هغوي خواهش وو چې د پښتو یو جامع لغت چاپ کړے شي . او دا مهم کار هغوي

سید انور الحق صاحب ته چې په پښتو اکېډیمی کښې ریسرچ افسر وو ، سپارلے وو . په دې کښې هیڅ شک نشته چې موصوف په دې سلسله ډېر محنت کړے دے او د پښتو لغت د پاره ئې د الفاظو یوه ډېره لویه ذخیره راجمع کړې ده . او بیا په خصوصیت سره د (الف) او (ب) پټې کښې بنیادي او اساسي کار هغوي سره د خپلو ملګرو چې وخت په وخت ددوي سره معاونان وو شوي، په جانفشاني سره کړے دے ."

د ۱۹۷۰ نه جنوري ۲۰۱۵ دمخه له پینځلسو جلدونو څخه ۱۳ جلدونه چاپ شوي وو . کله چې زۀ د بلوچستان پوهنتون کوئټه څخه پېښور پوهنتون ته راغلم او پښتو اکېډیمي کښې د ډائرېکټر په حېث ذمه وارياني راته اوسپارل شوې ، نو ما په خپلو ورومبنيو ترجيحاتو کښې دا منصوبه شامله کړه ، چې دا لغت بې د څۀ ځنډ سر ته اورسولې شي. ځکه چې ددې متعلق دا تاثر خور وو چې پښتو اکېډيمي په خپل شپېتۀ کالنه دوره کښې ايله قدر يوه ډکشنري هم مکمله نۀ کړې شوه او دا د اکېډيمۍ د عملې او ډائرېکټرانو په ترجيحاتو کښې شامله نۀ ده .ددې خبرو تل ته نۀ ځو ځکه چې دې خبرو ته نۀ خو وخت شته او نۀ مو ددې دمتعلق له سپيناوي سره کار شته .

د پينځو مياشتو په موده کښې (د فروري ۲۰۱۵ نه ترجون ۲۰۱۵ پورې ) پاتې دوه جلدونه يعني څوارلسم او پينځلسم جلد چاپ ته تيار کړل شوي وو خو کله چې ددې د چاپ چارو لګښت او د پينځلس جلدونو ضخامت ته مو اوکتل ، نو د ټېله ټېلو جلدونو چاپولو اراده مو پرې ښوده او ددې پر ځاے دا ټول به يو جلد کښې او په نوې ښه کمپوز شکل کښې چاپولو فېصله مو اوکړه . دې مرحله کښې کوم ستر مشکل چې را مخې ته شو هغه دا چې د دوۀ وروستيو جلدونه پرته مخکښيني ټول جلدونه د کاتبانو په لاس زَړه املا کښې ليکل شوي وو . بل دا چې اکثر کمپوزران د زَړې املا څخه نابلده وو ځکه هغوي څخه کمپوزنګ کښې ځښتې ډېرې تېروتنې کېدلې . د پښتو کمپوزرانو د کمپوزنګ مهارت په حواله به دومره ووايم چې اکثر کمپوزران د شاعرانو شعري مجموعې په کمپوزولو کښې ښه تجربه لري مګر د نثري موادو او په تېره د لغت په کمپوز کولو کښې نابلد يا ښخي لږ مهارت لري . هم دغه يواځينے علت وو چې له کبله ئې دا لغت د ځنډ ښکار شو .

**شکرالحمدللّٰه** اوس ددې قاموس د ترتيب او سمونې چارې په نوې ښه برابر کړل شوې دي لوستونکي کولے شي چې د پينځلس جلدونو په ځاے يو جلد کښې مکمل لغت اوګوري . تر کومه چې د لغت د نوم تعلق دے نو تر دې د مخه ديارلس جلدونه د "پښتو ژبه" په نوم چاپ شوي وو . خو دې نوم يو داسې تاثر ورکولو ګوياچې دې کښې د ژبني مسائلو په اړه مباحث شوي نۀ چې لغت . ځکه پس له ډېر غور و فکر الله رب العزت راته ذهن کښې د "پښتواکېډيمي لغت" نوم واچولو او هم دا مو ورته غوره کړو. دغه نوم په څو حوالو سره جالب دے ، لکه ورومبے ټکے " پښتو" په معنا د پښتنو او پښتو وئيونکيو خلقو ژبه ، "اکېډيمي" پښتو اکېډيمي پېښور پوهنتون او لغت نه مراد د پېښور پښتو اکېډيمي له خوا جوړ کړل شوے لغت (پښتو اکېډيمي لغت).

ددې لغت تيارولو د پاره د پښتو اکېډيمي پخواني کارپوهان د پښتونخوا ټېله ټېلو علاقو ،کليو او بانډو ته تلي او نېغ په نېغه ئې د خلقو له خولې ټکي راټول کړي . د هر ټکي په اصل او رېښو ئې ژور بحثونه کړي دي . دې نه علاوه د هغوي مخې ته دغه لاندينی لغتونه هم موجود وو لکه:

"د موجوده لغت تيارولو په سلسله کښې د ډېرو الفاظو د اشتقاق او مخرج د پاره د فارسۍ ژبې ستېنګاس، برهان قاطع، فرهنګ دهخدا، فرهنګ انند راج، فرهنګ نظام، او د اردو ژبې جامع اللغات، اصف اللغات، فېروزاللغات، نسيم اللغات، انواراللغات او د انګرېزۍ ژبې اکسفورډ ډکشنري، وېبسټرز، سټېنډرډ ډکشنري، انسائيکلوپيډيا برټانيکا، انسائيکلوپيډيا امريکانا، چيمبرز انسائيکلوپيډيا، انسائيکلوپيډيا اف سوشل سائنسز، انسائيکلوپيډيا اريانا، اردو انسائيکلوپيډيا ، ډکشنري پرشين عربک اېنډ انګلش،

انسائیکلوپیډیا اف اسلام، هندوستاني انګلش ډکشنري، ولسن سنسکرت انګلش ډکشنري، د عربي المنجد، القاموس العصري، لغات القران او داسې نور لغتونه په څۀ نه څۀ شکل کښې دې ډکشنري لیکلو د پاره کتلي دي او ورنه استفاده شوې ده."

د پښتو اکېډیمي له خوا د "پښتو ژبه" په نوم د ۱۳ چاپ او د دوؤ ناچاپ جلدونوپه حقله لنډ شان معلومات په دې ډول دي:

| جلد | ټکي | چاپ کال | زېرنګراني | مولف /مرتب | کاتب | مخونه | سائز |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | الف نه الف میم پورې | ۱۹۷۰ | سېدرسول رسا | | مولوي فضل ودود | ۴۷۶ | ۸/۲۷×۱۷ |
| ۲ | الف ن نه الف ی پورې | ۱۹۷۰ | سېدخیال بخاري | پردل خان خټک، مولوي محمد اسحاق | مولوي فضل ودود | ۲۴۳ | // |
| ۳ | ب | ۱۹۷۱ | سېدخیال بخاري | پردل خان خټک، مولوي محمد اسحاق | مولوي فضل ودود | ۴۹۶ | // |
| ۴ | پ | ۱۹۷۲ | سېدخیال بخاري | پردل خان خټک، مولوي محمد اسحاق | مولوي فضل ودود | ۴۷۴ | // |
| ۵ | ت ټ ث | ۱۹۷۴ | سېدخیال بخاري | پردل خان خټک، مولوي محمد اسحاق ، سید خیال بخاري | مولوي فضل ودود | ۳۸۶ | // |
| ۶ | ج ځ چ څ | ۱۹۷۴ | سېدخیال بخاري | پردل خان خټک ، مولوي محمد اسحاق . سیدخیال بخاري | مولوي فضل ودود | ۴۰۹ | // |
| ۷ | ح خ | ۱۹۸۱ | پروفېسر محمد نواز طائر | پردل خان خټک، مولوي محمد اسحاق ، راج ولي شاه خټک | لطف الله سوريزي پایان | ۳۳۶ | // |
| ۸ | د ډ ذ | ۱۹۸۳ | پروفېسر محمد نواز طائر | پردل خان خټک ، مولوي محمد | لطف الله سوريزي | ۲۵۱ | // |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | اسحاق ، شاه جهان | پایان | | |
| ۹ | ر ړ ز ژ ږ | ۱۹۸۹ | پروفېسر محمد نواز طائر | پردل خان خټک، ډاکټرخیال بخاري ، مولوي محمد اسحاق، | لطف الله سوریزي پایان | | // |
| ۱۰ | س | ۱۹۹۰ | پروفېسر محمد نواز طائر | پردل خټک،ډاکټر خیال بخاري، مولوي محمد اسحاق | لطف الله سوریزي پایان | ۶۷۷ | // |
| ۱۱ | ش ښ ص ض ط ظ | ۱۹۹۵ | پروفېسر ډاکټر راج ولي شاه خټک | ډاکټر خیال بخاري، پروېز مهجورخوېشکي ، مرستیال: احمدعلي عاجز | لطف الله سوریزي پایان ، ارشادخان | ۵۹۴ | // |
| ۱۲ | ع غ ف ق | ۱۹۹۸ | پروفېسر ډاکټر راج ولي شاه خټک | ډاکټرخیال بخاري، پروېز مهجور خوېشکي . ترتیب و تدوین : محمدجاوېدخلیل، احمدعلي عاجز | لطف الله سوریزي پایان ، ارشاد خان | ۶۷۲ | // |
| ۱۳ | ک ګ | ۲۰۱۳ | پروفېسر ډاکټر سلمی شاهین | ډاکټر خیال بخاري، ډاکټر جاوېد خلیل | ارشاد خان ، محمد عارف خلیل | ۶۹۶ | // |
| ۱۴+ ۱۵ | ل ﻧﻪ تر ی پورې | کمپوز کال - جولائي (۲۰۱۵) "پښتو اکېډېمي لغت" سره یو ځاے کړل شوے | | | | | |

**د (الف) نه تر ( ي ) پورې د ټکيو شمېر په دې لاندې ډول دي :**

اول او دويم جلد الف نه تر الف ن ، الف ميم نه تر ی پورې : ۵۶۱۹

دريم جلد ب : ۵۵۸۱

څلورم جلد پ : ۵۳۲۴

پينځم جلد ت : ۳۳۸۰ ، ټ : ۱۳۴۰ ، ث : ۸۰ ، ضميمه : ۵۰ ، د ت ټ ث او ضميمه غونډ : ۴۸۵۰

شپږم جلد ج : ۱۵۱۰ ، ځ : ۷۱۹ ، چ : ۲۰۸۹ ، څ : ۱۱۶۹ ، ضميمه : ۳۸ ، غونډ : ۵۵۲۵ .

اووم جلد ح : ۶۰۲ ، خ : ۳۹۷۰ ، ضميمه : ۹۶ ، غونډ : ۴۶۶۸

اتم جلد د : ۲۴۴۲ ، ډ : ۱۲۳۲ ، ذ : ۱۰۶ ، غونډ : ۳۷۸۰

نهم جلد ر : ۲۵۷۵ ، ړ : ۱۵۸ ، ز : ۲۵۰۸ ، ژ : ۶۱۱ ، ږ : ۱۰۸ ، غونډ : ۵۹۶۰

لسم جلد س : ۷۱۷۵

يوولسم جلد ش : ۳۷۶۶ ، ښ : ۸۴۲ ، ص : ۹۰۰ ، ض : ۱۸۷ ، ط : ۴۹۳ ، ظ : ۱۰۷ ، غونډ : ۶۲۹۵

دولسم جلد ع : ۱۳۶۰ ، غ : ۲۷۵۹ ، ف : ۸۴۷ ، ق : ۱۵۷۸ ، غونډ : ۶۵۵۴

ديارلسم جلد : ک : ۵۳۱۲ ، ګ : ۲۵۳۰ ، غونډ : ۷۸۴۲

څوارلسم او پينځلسم يو ځاے : (ناچاپ)

ل : **۲۶۹۸**

م : **۲۳۸۸**

ن : **۳۱۵۰**

و : **۳۲۲۸**

ه : **۷۲۰**

ي : **۳۲۵**

د اول نه تر ديارلس جلدونو پورې غونډ ټکي : **۶۹۱۷۳**

او د (ل) نه تر (ي) پورې : **۱۲۹۰۹**

کل د (الف) نه تر (ي) پورې : **۸۲۰۸۲**

(دغه شمار يواځې د سر ټکيو ، محاورو ، تراکيبو او اصطلاحاتو دے . معناوې، تشريحات، متلونه، اشعار، ټپې، غاړې ، اقوال ، نثري بېلګې او نور شامل نهٔ دي خو که هغه ورسره شمار کړل شي نو داسې ددې لغت ټول ټکي تر **۲۳۶۴۸۲۲** پورې رسي ).

**ددې لغت ځانګړتياوې**: دې کښې د پښتنو د هرې قبيلې او د پښتونخوا د هر ګُټ نه ټکي راغونډ کړل شوي . د نورو ژبو نه کوم ټکي چې اخستل شوي هغه په خپل اصل حالت ليکل شوي ، په خصوصيت سره د عربي او پارسي .

د هر ټکي سند د پاره موزون شعر ، ټپه ،متل ، غاړه يا د نثر څهٔ نه څهٔ نمونه د سند په توګه راوړل شوي دي . دغه مثالونه زياتره د کلاسيک شاعرنو دکلام او يا د جديد دور د غښتليو شاعرنو او نثرنګارانو نمونو څخه اختسل شوي .

د لغت په داخل کښې هر سر ټکے په غټ فونټ او مخې ته د معنا فونټ ترېنه لږ کم ساتل شوے .

د هرې قبيلې د ټکيو ساخت ،لهجوي ادائيګي، معنواو د هغو د استعمال خاص خيال ساتل شوے.

دا ډکشنري د نستعليق پر ځاے په نسخ خط کښې ليکل شوې ده.

په معياري املا او د پښتو په متفقه ليکدود کښې ليکل شوې ده .

دا د پښتو تر ټولو معياري او جامع لُغوي تشريحي قاموس دے.

ددې د حروفو ترتيب هم هغه د اکېډيمۍ د الفباچارټ په مطابق ساتل شوے . ددې په اړوند د پښتو ځينې داسې لغاتونه شته چې د هغو ترتيب د توريو د غږونو په لحاظ ساتل شوے لکه د افغانستان ځينې اوسنې قاموسونه .

دا قاموس د يو فرد ياد يو څو کسانود کار نتيجه نۀ ده بلکې دا د يوې منظمې ادارې له خوا په مربوط ډول جوړ کړل شوے قاموس دے ،ددې د هر ټکي پوره - پوره څېړنه او سکښتنه شوې ده . دې نه علاوه د هر ټکي علاقائي نسبت او لهجه ښودولو هم هڅه شوې ده .

ددې لغت د هر توري (حرف) په ضمن کښې راوړل شويو ټکيو شمار ځان له او د غونډو ګډه ځانه له ښودل شوې ده .

ددې تر مخه د اکېډيمۍ (پښتو ژبه) او هم ځينې نور قاموسونه څو – څو جلدونو کښې يا د يو جلد په صورت کښې ضخيم چاپ شوي،خو ددې قاموس له ځانګړتياؤ څخه يوه دا هم ده چې دا د پينځلس جلدونو پرځاے يو جلد کښې راغونډ کړل شوے او هم معقول ضخامت لري .

د ټکيو ترتيب ، معناوې، محاورې ، مرکبات او اصطلاحات هم هغه دې کوم چې د مخه چاپ جلدونو کښې ساتل شوي ده .د ځينو ټکيو درسته املا او درسته معنا د راوړلو هڅه شوې ده ، يعنې د ټکيو اصل ته رجوع شوې ده (په املا کښې او هم په معنا کښې) . په ځانګړې ډول هغه ټکيو کښې کومو کښې چې د ( ځ ، چ ، څ ، ږ ، ژ، ښ ، ش ، ڼ ، ي ، ې ، ۍ ، ئ او يا د پرتې ے ) توري راغلي . دې نه علاوه په تېرو جلدونو کښې د شويو تېروتنو د سمولو پوره - پوره هڅه شوې ده . کېدلے شي يو نيم ځاے غلطياني پاتې شوې وي ، هيله ده چې لوستونکي به هغه په نخښه کړي او اداره ته به ئې راوليږي . انشاءالله بل اشاعت کښې به هغه اوباسو.

دې کښې د پښتنو تاريخ متعلق د ځينو واقعاتو ذکر، د پښتنو د بېلا بېلو قبيلو نومونه او شجرې، د بېله بېلو لهجو د ټکيو د تلفظ ،د مرکباتو پراخولے او څېنې نور ځانګړي اوصاف موجود دي .

**وړانديزونه** : ضرورت ددې خبرې دے چې د پښتو لغت ليکلو په حواله دې داسې څېړنې مخې ته راشي چې په هغه کښې د لغت ليکلو اصول او تنقيدي مباحث وي . دې کار د پاره په دولتي او غېر دولتي سطح کوټلي اقدامات او مرسته پکار ده .

د يو کره او معياري لغت سازولو د پاره لازمه ده چې مونږ د ژبې تکړه پوهان، ګرائمر ليکونکي د نورو ژبو ماهرين ، ګرائمر پوهان، د کمپيوټر ټېکنالوجي ماهرين او داسې سائنس پوهان اولرو چې په خپل فيلډ کښې لوړه غښتلتيا لري .

د بحث په پايې کښې بايد مونږ ددې خبرې په ډاګه اعتراف اوکړو چې ددې لغت د موادو په راغونډولو ، ترتيبولو ، تيارولو او د ټکيو په چاڼ و سکښنت کښې د **ارواښاد ډاکټر خيال بخاري** ونډه د هېرولو نۀ ده . په داسې موقعه چې د هغۀ په لاس راغونډه کړل شوې د پښتو د لفظونو خزانه "پښتو اکېډيمي لغت" نن په مکمل صورت تکميل ته رسېدلے ، د الله تبارک و تعالی په لوے دربار کښې دعاګو يو چې پاک الله دې هغۀ ته هاغه جهان کښې بلند درجات ورنصيب کړي او روح دې ښاد وي .د اکېډيمي د تېرو ټولو ډائرېکټرانو ، د هغه وخت د استاذانو،

مرستیالانو او کاتبانو چې په ډېر مشکل حالاتو کښې ئې دا پروژه پر مخ بیولې ده، ته هم اخترامات وړاندې کوؤ . ځکه چې دا هر څۀ د هغوي د پرله پسې خواریو او محنت نتیجه ده .

زۀ په خپله د رب تعالٰی بې حده مشکور یم چې ددې لغت د تکمیل کړی ئې زما په برخه رانصیب کړه . بېشکه دا هر څۀ د هاغه ذات له جانبه دي چې چا ته ئې خوښه شي ورله عزت او بلند درجات ورکړي او هغه څوک چې د هاغه لوے ذات له نعمتونو څخه منکر ،ناشکره او تکبر اوکړي، ذلت ، رسوائي او پستي ور په برخه کړي .

هیله ده چې دا لغت به د پښتو د معیاري ، کره او مستند ډکشنرۍ نۀ لرلو تشیا ډکه کړي او ددې ژبې ویونکي وګړي به ئې د څېړنې ، د درس و تدریس ، د پوهنې و ښودنې په چارو کښې ، د کاروبار په معاملاتو کښې، په سرکاري و دفتري امورو کښې ، په پرنټ او الېکټرانک مېډیا کښې غرض د ژوند په هر ډګر کښې په بشپړه ډول اوکاروي .

د پښتو ژبې خواخوږو او لوړ رتبه چارواکو څخه هیله ده چې پښتو ویونکي او پښتانۀ به په دې بسخات نۀ کوي بلکې تر دې لا نورو کارونو د پاره به خپله مرسته همدغسې راسره جاري اوساتي . د ژبې ترقي د یو کس یا د یوې ادارې د وس کار نۀ دے بلکې دا اجتماعي ښېګړه غواړي ځکه مونږ له پښتون اولس څخه او د خپلو لوړ رتبه چارواکو څخه هیله من یو چې هغوي به په هر مقام د خپلې مورنۍ ژبې د پالنې او پر مخ بیولو په لړ کښې د هر قسم مصلحتونو نه تېر شي او د قانون او ائین تر دائرې لاندې به ددې ژبې پرمختیا د پاره کوټلې ګامونه واخلي .

**خصوصي او ستره مننه :** د کمپوزر حاجي ارشاد خان چې د دې لغت د کمپوز زیاتره چارې ددۀ پـه لاس تر سره شوې دي ، الله دې په صحت روغ او د پښتو خدمت ته تل هم دغسې ګرځندے لري . د پښتو اکېډیمي سابقه ډائرېکټر محترمه پروفېسر ډاکټر سلمٰی شاهین صاحبه چې د اکېډیمۍ زنده امین او روح روا ده ، خصوصي مننه کوو چې هر وخت ئې د اکېډیمۍ په فعالیتونو نظر وي او نیکې مشورې راکوي . د پښتو نومتو ادیب او څېړنکار پروفېسر ډاکټر یارمحمد مغموم خټک صاحب چې د خپلو ځنټو مصروفیاتو څخه ئې د لُغت تصحیح دپاره راته وخت راکړے او د حبیب الله کاکا (کمپوزر د افغانستان) یو جهان مننه کوم چې د لغت په تیکنیکي پړاؤ کښې راسره مرسته کړې ده .

**هم :** [ د اکېډیمي د فېکلټي سټاف: ډاکټر فرخنده لیاقت ، ډاکټر نورمحمد دانش بېټنے ، ډاکټر شېر زمان سیماب او ډاکټر بشرٰی خاتون او د پښتو څانګې د ډاکټر احمد علي عاجز مننه .]

**ځانګړې مننه :** د خپلو شاګردانو(د پښتو اکېډیمي د ایم فل او پي ایچ ډي) ډاکټر عبدالحکیم شاه خټک ، صلاح الدین (سائیلان افریدي)، خلیل اورکزے (شاکر اورکزے)، انورعلي اورکزے ،داود جان مومند ، فېصل فاران ، طارق محموددانش، طفېل احمد زریاب یوسفزے ، جواد شفق، مسعود خان شینوارے، عطاءالرحمن عطاء، احسان یوسفزے ، خورشید عالم وزیر، عظمت علي دراني ،ایازالله ترکزے ، حمیدالله د بنو ، پیر حزب الله شاه ، ګل وزیر افریدے ، ضیاالدین داوړ او یو لړ نورو انتهائي مننوي یم چې په دې لُغت کښې ئې په زړۀ سره ستر خدمات کړي .

په درناوي
پروفېسر ډاکټر نصرالله جان وزیر
ډائرېکټر
پښتو اکېډیمي ، پېښور پوهنتون خېبر پښتونخوا
نېټه : لسم محرم ، ۱۴۴۰هـ ، ۲۱ ستمبر ،۲۰۱۸عیسوي کال

# مخففات

## د لهجو او ژبو د نومونو دپاره دا مخفف ټکي استعمال شوي دي.

| مخفف | نوم | مخفف | نوم | مخفف | نوم |
|---|---|---|---|---|---|
| آفر | آفریدي | بنګ | بنګالي | عب | عبراني |
| آو | آوستا | بنو | بنوڅي | فا | فارسي |
| ا، خ | اکوړه خټک | پ | پښتو | کش | کشمیري |
| اُر | اردو | پن | پنجابي | کهو | کهوار |
| اُرمړ | ارمړي | پهـ | پهلوي | ګن | ګنده پور |
| اُس | استراني | تُر | تُرکي | ل | لاطیني |
| آش | اشنغر | خ | خټک | مر | مروت |
| اَف | افغانستان | خل | خلیل | مل | ملیزي |
| انګ | انګرېزي | دَو | دَوړ | مهه | مومند |
| اورک | اورکزي | س | سنسکرت | وز | وزیر مسود |
| با | باجوړ | سُر | سُرياني | هـ | هندي |
| ب ،خ | بارک خټک | سن | سندهي | هن | هندکو |
| برو | بروهي | سو | سوات | یو | یوناني |
| بلو | بلوڇي | شن | شنواري | یوسف | یوسفزي |
| بن | بنګش | ع | عربي | | |

## د صرفي نحوي نومونو

# مخففات

| مخفف | نوم | مخفف | نوم | مخفف | نوم |
|---|---|---|---|---|---|
| اِ | استقبال | حا | حال | مح | محاوره |
| اَس | اسم | حمص | حاصل مصدر | مخ | مخفف |
| اَش | اشاره | ز | زمان | مذ | مذکر |
| اِص | اِصطلاح | ص | صفت | مر | مرکب |
| اَمر | اَمر | عا | عاميانه | وا | واحد |
| با | بازاري | ف | فعل | مش | مشترک |
| تر | ترکیبي | فاع | فاعل | مص | مصدر |
| تفض | تفضیل | ق | قدیم | معر | معروف |
| ج | جمع | لا | لازم | مف | مفعول |
| جج | جمع الجمع | لُغ | لغوي | مؤ | مؤنث |
| جغ | جغرافيه | ما | ماضي | و | وګورئ |
| ح | حرف | مت | متعدي | | |

# ا

**اَ** :- [ حرف ، اَلف یا اَلِپ په زوَر سره ] (۱) د پښتو د الف بې پټې په زوَر سره اول توری ـ دا قسم الف همېشه د ټکي په سر کښې راځي ـ (۲) د او مخفف لکه : '' اَتهٔ ولې ولاړې ؟ '' یعني او تهٔ ولې ولاړې؟ (۳) د هغه مخفف لکه اخوا یعني هغه خوا ، اَبل ټوپک یعني هغه بل ټوپک.

**اِ** :- [ حرف ، اَلف د زېر سره ] (وز + ب ، ج (ددې په ځاے اِ (اے) وئیلے شي ـ لکه امو یعني دِما ، اتو ، یعني دِ تا ـ

**اُ** :- [ حرف ، اَلف د پېښ سره ] پېښ چې په الف ولګي نو د واؤ آواز پېدا کوي ـ لکه اوېهٔ ـ

**اَبا** :- (اَ + با ) [پ ، ع : اَب ، اُر : ابّا ، اس ، مذ ، وا ، ج: اباګان ، اباګون ] (۱) پلاران ، بابا ، نیکهٔ

لکه دوي کاندې دا چارې
دا مې نــهٔ دے پــه ابــا (خوشحال)

(۲) بچې پلار په دغه نوم بولي ـ لکه:'' هغه دے ابا مې راغلو ''.

**ـــ کول** : (مص تر ) (۱) پلار جوړول ، څوک په پلار نیول (۲) کله کله د طنز په ډول هم استعمالېږي ـ

**ـــ کېدل** :- (مص تر ) (۱) د چا پلار جوړېدل ، پلارکېدل (۲) د چا په وجه څهٔ تکلیف رسېدل (۳) خواه مخواه په یو کارکښې ګوتې وهل

**اَبابیل** :- (اَ + با+ بي + ل ) [ ع : اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ] توتاکرے ، توتاکرکے ، توتاګرکے ، ځرخکه ، خرڅکے

**اَبات** :- (اَ + با+ ت ) [ پ ، فا : آبا ، ص ، مذ ، وا + ج ، (مؤ وا : آباته ، ج : اباتې) ] (و ـــ آباد)

**اَباتوب** :- (اَ + با+ تو + ب ) [ پ ، اس ص ] ابا ، بابا یا پلاروالے ، د چا پلار کېدل ، لکه : '' د اباتوب چل خو درځي ''

**اَباتول** :- (اَ+با+ت+و + لْ ) [ پ ، فا : آبادول ، مص مت ] (و ـ آبادول)

**اَباتونه** :- (اَبا+ ت + و + نَ ) [ پ ، حمص ] (و ـــ آبادونه )

**اَباتوونکے** :- ( اَبا + ت +وو + ن + کے ) [ پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا ، ج: اباتوونکي] (و ـــ آبادوونکے )

**اَباتي** :- (اَ + با+تي ) [ پ ، فا : آبادي ، اس ص ،مؤ ، وا ، ج: اباتۍ] (و ـــ آبادي )

**اَباتېدل** :- (اَ+ با+ تې +د + ل ) [پ،فا: آبادېدل، مص لا] (و ـ آبادېدل)

**اَباتېدنه** :- (اَ+با+تې+د+نَ ) [ پ ، فا: ابادېدنه ، حمص ] (و ـ ابادېدنه)

**اَباخېل** :- (اَ + با+ خې + ل ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ] (۱) د پلار د طرف نه خپلوان (۲) د پښتنو د یوې قبیلې نوم ـ (۳) د یو کلي نوم ـ

**ابازي** :- ( اَ با + زي ) [ پ ، اس ، مذ ، وا] (۱) د پښتنو د یوې قبیلې نوم (۲) د پېښورپه علاقه کښې دیوکلي نوم ـ لکه :'' چې ځې ځې ابازو له به راځې ''

**اَبازے** :- (اَ با + ز + ے ) [ پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : ابازي ] (۱) د ابازو سره تعلق لرونکے (۲) د ابازو د قبیلې غړے ـ

**اَباسک** :- (اَ + با + سَ + ک ) [ اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ] یو قسم بوټے د ے ـ چې وبخ ئې د الو په شان وي ـ

**اُباسَے** :- (اُ+ با + سَ+ ے + یا ئے ) [ پ (یو) اس ، مذ ، وا ، ج : اُباسي] اربړے ، اړزمے ، اړژمے ، خولهٔ بکے ـ

**اَباسین یا اباسیند** :- (اَبا + سي+ ن یا سي + نْ + د ) [ پ (اُر : سندھ) اس مذ ، وا ] لغ : د سیندونو پلار ، لوے سیند ، اص : د سیند دریاب ـ اباسین د پښتونخوا په لویه علاقه کښې بهېږي او بحیرهٔ عرب کښې سمندر ته غورځېږي ـ

یا د وینو اباسین وهلے موج دے (حمید)

چې له کومو غرونو راغے چېرته درومي
ابـاسیند لا پـــه دا هـېـڅ نــهٔ دے خـــبر (خوشحال)

**اَباګنې** :- ( اَ+ با + ګَ + نْ + ې یا ئے ) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ ، وا ] پلارګنې ، د جینۍ د پلار کور ـ

**اِبتدا** :- (اِب + تَ+ دا ) [ ع ، ص ، مؤ ، وا ] اول سر ، شروع ، بنیاد آغاز

زمکه سبزه زرغونه شي
د حمــــل پــــه ابتــدا (خوشحال)

**ـــ کول** :- ( مص تر ) شروع کول ، په څهٔ کار لاس پورې کول ، د څهٔ څیز بنیاد اېښودل

**ـــ کېدل** :- (مص تر ) شروع کېدل ، په څهٔ کار لاس پورې کېدل ـ

**اِبتدائي** :- (اِب +تَ+ دا + ئي ) [ فا ، ص ] اولنے ، د شروع ، د سره ، د اول نه ـ

**اَبتر** :- (اَب+ تَرْ ) [ ع ، پ (روسي قاموس) ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: ابتره ، ج : ابترې ] (۱) اوتر ، پرېشان ، ګډوډ

غم مې نشته بل دیګر
ستا غمونــو کـړم ابتر (رشید)

(۲) غریب ، خوار (۳) ناقص ، خراب ، بې خونده ، بې کاره ، بې بوده

کنه واړه ددهٔ چار ګنیه ابتره (خوشحال)

(۴) مشغول اختـه

مخ په بل خوا تــه هــر ګز اونهٔ جارباسي
چې شي ستا په خمارو سترګو ابترڅوک (رحمان بابا)

مؤ ، وا:

چې د یار دپاره یمه
کــه تر دا ابتره شمه (صدرخان)

**ـــ کول** :- (مص ، تر ) (۱) اوتر کول ، ګډ وډ کول ، پرېشانول ، (۲)خوارول (۳) خرابول ، بې کاره کول ، بې خونده کول ، بربادول

**ـــ کېدل** :- (مص تر ) (۱) اوتر کېدل ، ګډوډ کېدل ، پرېشانېدل (۲) غریبېدل ، خوارېدل (۳) خرابېدل ، بې کاره کېدل ، بې خونده کېدل ، بربادېدل ـ

**اَبته** :- (اَ+ بَ + تَ ) [ پ ، ع حبطه ، ص ] (۱) ګنده ، خراب ، لړلے ، پلیت (۲) بدنامه

ابته کاندې ناموس د پلار و مور (رحمان بابا)

(۳) عبث ، بې معنې ، بې ځایه ، وران

**ـــــ کول** :- (مص،تر) (۱) گنده کول خرابول ، لړل ، پلیتول (۲) بدنامول ، بدنامي ورپورې کول ، شرمول (۳) عبث کول ، بې کاره کول ، ورانول۔

**ـــــ کېدل** :- (مص،تر) (۱) گنده کېدل،خرابېدل ،پلیتېدل (۲) بدنامېدل ، بدنامي ورپورې کېدل ، شرمېدل ، (۳)عبث کېدل ، بې کاره کېدل ، ورانېدل ۔

**اُب تېر** :- (اُ بْ + تې + رْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا] په اوبو تېر خوړل ، سراب د گرمۍ په ورځو کښې په صحرا یا مېداني علاقه کښې مېدان اوبهٔ اوبهٔ ښکاري۔

**اَب جد** :- (اَبْ +جَدْ ) [ ع،پ : او ، جد ، اس ، مذ ، ج ] د عربۍ د الف بې د پتۍ اتهٔ ویشت توري چې د هر یودپاره بېل بېل اعدادمقرر شوي دي

| ا | ب | ج | د | ه | و | ژ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ |
| ج ۸ | ط ۹ | ي ۱۰ | ک ۲۰ | ل ۳۰ | م ۴۰ | ن ۵۰ |
| س ۶۰ | ع ۷۰ | ف ۸۰ | ص ۹۰ | ق ۱۰۰ | ر ۲۰۰ | ش ۳۰۰ |
| ت ۴۰۰ | ث ۵۰۰ | خ ۶۰۰ | ذ ۷۰۰ | ض ۸۰۰ | ظ ۹۰۰ | غ ۱۰۰۰ |

**په ابجدو کښې خبرې کول** :- (اص) په اشارو کښې غږېدل ، صفا خبرې نهٔ کول

**د ابجدو حساب** :- لغ : د تورو د عددونو حساب ، اص : په اشارو کښې خبرې ، صفا خبرې نهٔ کول۔

دانشمند د معما پــه علم پــوه دے
د ابجد پــه حساب څهٔ خبر نالوستے (خوشحال)

**اُبجن**:- (اُب + جَنْ) [ پ ،ص ،مذ ، وا ، ج ، (مؤ ، وا : اُبجنه ، ج: اُبجنې ] اُب ځن ، اُبړن ، جروبن ، چړوبن ، چچروبن ، زیم جن۔(۱) هغه دېوال یا کمر چې اوبهٔ راکاږي۔لوند شان لیدهٔ شي۔او د ښورې اثر په کښې زیات وي۔ (۲) مېوه چې زیاته پخه شي او نرمه شان شي۔(۳) زخم چې لږ نرم شي او اوبهٔ پټې کړي۔

**اَبجه** :- (اَ + بْ + جَ ) [ اف: پ (قاموس) ص ، مؤ ] دا یواځې نهٔ استعمالېږي د صفت په ډول د بلا سره یو ځاے راځي ۔ لکه : " ابجه بلا وه " یعني یروونکې بلا وه۔

**اُب ځن** :- (اُبْ+ځَ + نْ ) [پ، ص، مذ ، وا] (و ـــ اُبجن)

**اُبځني سترگې**:- (اُبْ + دْزَ + نې + س + تَرْ + گې ) [ پ ، اص] چوپنې سترگې ، چوچې سترگې ، اُبجنې سترگې ، هغه بیمارې سترگې چې اوبهٔ ترې بهېږي۔لکه : " اُبځنې سترگې بنې نهٔ ښکاري "۔

**اَبد** :- (اَ+بَ + دْ ) [ ع ، اس ، مذ ،وا ] تل تر تله ، نهٔ ختمېدونکے وخت ۔ همېشه همېشه

**تر اَبده** :- (تَرْ + اَ + بَ + دَ ) [ پ ، اص ] همېشه ، تل تر تله ، تر آخري وخته

چې مې څو ژبه چلېږي تر ابده
ډېر دې وي صلوٰة پــه محمد ص (نعمت الله)

**اَبدال** :- (اَبْ + دا + ل ) [ ع ، اس ، مذ ، وا، ج : ابدالان ] (۱) اودال بزرگ یا نېک سړے۔(۲) د بزرگانو یو خاص ټولے۔

کافــر اوباسي له کفره
په یوه ساعت ابدال شي (رحمان بابا)

**اَبداله** :- (اَبْ + دا + له ) [ پ تر ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ابدالې ] نېکه او بزرگه ښځه، ښه ښځه۔

**اَبدالي** :- (اَبْ + دا + لي ) [ فا تر ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : ابدالیان ، مؤ، وا : ابداله ، ج : ابدالې ) ] (۱) د ابدالیانو نه ، ابدالے ، د پښتنو د قبائلو نومونه چې دُرانیان هم ورته وئیلے شي۔(۲) احمد شاه بابا چې د پښتنو یو مشهور بادشاه تېر شوے دے۔ددې قبیلې غړے وو او ابدالے وو۔

**اَبدالۍ** :- (اَبْ + دا + لۍ ) [ پ تر ، اس ، مؤ ، وا ، ج ] ابدالي ښځه یا ښځې ، دُرانۍ ښځه.

**اَبدالے** :- (اَبْ + دا + لے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : ابدالیان ] د ابدالي قبیلې نارینه سړے۔

**اَبدي** :- (اَ+بَ + دي ) [ ع ، فا تر ، ص ] همېشه دپاره ، تل تر تله ، غېر فاني

ابــدي ژونــدون بــه خپل کا
چې خوشحال غوندې فنا شي

**ـــــ ژوندون** :- (اِص) تل تر تله ژوند ، همېشه ژوند ، هغه ژوند چې فنا ئې نهٔ وي

ابــدي ژونــدون بــه خپل کا
چې خوشحال غوندې فنا شي

**اَبرک** :- (اَبْ + رَ + کْ ) [ ه ، ع : ابرق ،اس ، مذ ، وا ] یو قسم چڼ کېدونکے یا ځلېدونکے څیز ، شگۍ۔

**اَبره** :- (اَبْ+رَ ) [ اف : پ (قاموس) اس ،مؤ ،وا ] (۱) یو گلدار کاغذ چې په جلدونو یا وَرزو باندې لگي۔(۲) یو قسم کپړه ، رخت (۳) د برغې کپړې پاسنۍ حصه (۴) یو ورکوټے شال چې په ملا راتاوېږي۔(۵) د بالښت غلاف یا استر۔

**اِبره** :- (ا بْ + رَ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ] (۱) د زمکې حاصل ، د زمکې پېداوار ، مېوه او غله ۔ (۲) د زمکې فصل چې کال په کال ادل بدل کرلے کېږي۔

**اَبرېښم** :- (اَبْ + رې + خَمْ یا شَمْ ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ] برېشم ، کچه رېښم د رېښمو مزے۔

**اُبړن** :- (اُبْ + ړَ+نْ ) [پ (گن) ص ، مذ ، وا ، ج : (مؤ، وا : اُبړنه ،ج :اُبړنې)] ډېر زیات پوخ شوے ، نرم ، خُړپن ، گلیا شوے ، اُبړی۔لکه :" دا ام خو اُبړن دے "۔" خربوزه اُبړنه ده "۔

**اُبړن** :- (اُبْ + ړَ + نْ ) [ پ ، ص ، مذ ، وا ] (و ـــ اُبجن)

**اَبړه دبړه** :- (اَبْ + ړَ + دَبْ + ړَ ) [ پ ، اص ] رعب داب ، دب دړکې ، دب دړیکه، اپړه دُوپړه۔

**اُبړے یا اُبړی** :- (اُبْ + ړَ + ے یا اُب + ړَ+ ی) [پ (سو) اس ، مذ ، ج ] (۱)چېچړې ، کروپې ، بوگړۍ ، گگڅې ، گرگرۍ (۲) شنه ذیلۍ شان (پرده) چې په اویو باندې جوړه شوې وي۔د چندخې شیرک ، د چینگشو کالي ، غروبۍ (۳) د شهتوت هغه قسم چې دانه ئې ډېره اوږده وي۔

**اَبزه** :- (اَبْ + زَ ) [ پ (سو) اس ، مؤ ، وا، ج : ابزې ] صراحي ، کُوزه ، (اوس دا ټکے ډېر کم استعمالېږي)

**اَبسډنډۍ** :- (اَ + بَسْ + ډَنْ + ډَۍ یا ډَئے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مر ، مؤ] گُلي ډنډا ، اوے جاوے ، د ماشومانو یوه لوبه ۔ لکه : " زهٔ د ملگرو سره ابسډنډۍ کوم "۔

**اَبک** :- (اَ + بَکْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ] (۱) د ابا د نوم ورکوټے شکل۔بچي او ښځې په مینه کښې پلار ته ابک وائي۔

د راحت په وخت چې تل تر تا ځارېږي
پــه سختۍ کښې وېــزارېږي له ابکَ (خوشحال)

(۲) د شیخ رحمکارحضرت کاکا صاحب رح پلارچې ورته ابک صاحب وائي

**اَبل** :- (اَ +بَ+ لْ) [ اف : پ (قاموس) لا] بربنډ ، دا ټکے په طور د "لاحقې" استعمالېږي۔لکه : " پښې ابل ، یعني بربنډې پښې ، رمنډې۔

**اُب لانده سترګې**:- (اُبْ+لا+ نْ+ دَ + سْ+تَرْ+ ګې) [پ ، اص](و ــ اُبڅنې سترګې)

**اُبلن** :- (اُبْ+لَنْ) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج ، (مؤ ، وا: اُبلنه ، ج: اُبلنې) ](و ـــ اُبځن)

**اُبلنې سترګې** :- (اُبْ+لَ+نې+سْ+تَرْ+ګې) [پ ، اص] (و ـ اُبحنې سترګې)

**اُب لُوښے** :- (اُب + لو + خې یا شې) [ پ ، اس ، مر ، مذ ، وا ] د اوبو لوښے ، هغه لوښے چې اوبهٔ په کښې کښېښنولے شي۔

**اُبلۍ** :- (اُبْ + لَ + ی یا لَ + ئے) [ اف ، پ ، اس] (۱) د خلاصې او ارتې خولې کوئے ، ډینګرۍ (۲) کانیزه زمکه ، آوۍ ۔

**اِبلیس** :- (اِبْ + لي + س) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : ابلیسان یا اِبلیسون (مؤ وا : ابلیسه ، ج : ابلیسې) ] (۱) شېطان

تېښتـــه اوکـړه لـه ابلیسَ
چې ابلیس لعین ښکاره شي

(۲) خبیث ، مُضره ، بد ، وران کارے ، هغه څوک چې د شېطان په شان کارونه کوي۔

**اِبلیس توب** :- (ابلیس + تو + بْ یا تې + ب) [ پ ، ص ] شېطان والے ، د ابلیس په شان ، شېطان توب۔

**اِبلیسک** :- (اِبْ + لي + سَکْ) [پ ، اس ، تصغیر ، مذ ، وا ] وړوکے شېطان ، شېطانَ ګوړے ، شېطان ګوتے ، ورکوتے ابلیس۔

چې وئیل کا د عرفان اثر ئې نهٔ وي
ابلیسک دے ورنه تښتـه په فرسخ (عبدالقادر)

**اَبوجه** :- (اَ+ بو + جَ) [ اف : پ (قاموس) ص ] زړې جامې لتې ، زاړهٔ زړوکي ، زاړهٔ کالي۔

**اَبوا** :- (اَ + بُو + وا) [ پ ، اس ، مذ ، وا ] ابوا ۔په سوات کښې د سرو کافرو د زمانې یو کلے دے۔چې اوس ډېر زیات کنډرونه لري۔خلق وائي چې مُلا بادر ددې ځاے ؤ۔چې هغه د نیمبولا تیمبولا قیصه ورسره تړلې ده۔

**اَبوۍ** :- (اَ+بو + ی) [ پ (ل) اس ، مؤ ، وا ] ابۍ ، ادې ، مور ، لکه: "ابوۍ مې ژاړي "

**اَبۍ** :- (اَ + بَ+ ی) [ پ ، اس ، مو ، وا ] (۱) مور ، ادې ، ابوۍ

پلار راکړے دے رخصت نهٔ پاتې کېږم
ابۍ تـهٔ دعـــا کـــوه چـــې روانـېږم (عبدالقادر)

(۲) د مور د بللو نوم۔لکه : " ابۍ زرشه منګے راکړه " (لوبه)

**اَبۍ توب** :- (اَبۍ + تو + بْ) [ پ ، اس ، ص ] مورولي ، موروالے ، ادې والے ، ابۍ والے ، مورتوب۔

**اَبۍ غاړې** :- (اَبۍ + غا + ړ + ې) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ابۍ غاړي ] لُغ:د مور د غاړې نه۔د مور د طرفه ، مور راؤړے ، ورور چې د مور د مخې وي خو پلاران ئې سره بېل بېل وي۔ چې مور ئې یوه وي او پلاران ئې بېل وي۔

**اَبیر** :- (اَ + بي + رْ) [ اف : پ (قاموس) ع : عبیر ، اس ، مذ، وا ] دا یوه خوشبویه څیز دے چې د کافورو ، عنبرو ، او د عودو د ګډولو نه تیارېږي۔او لوګے کولے شي۔ځینې خلق ئې په جامو دُوړوي۔

**اَبیرات** :- (اَبي +را + تْ) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ] په یو شان ، په یو شکل ، په څېر ، غوندې۔

**اَپ** :- (اَ + پْ) [ اف ، پ (قاموس) ] دا ټکے د 'کول' سره استعمالېږي۔معنیٰ ئې لواړ تېرول ، نغرل۔لکه : " ډوډۍ ئې اپ کړه "

**ـــ کول** :- (مص تر) خوړل ، تېرول ، شوئې ، تېرول ، لواړ تېرول ، د ماشومانو په ژبه کښې خوړلو ته وائي۔

**په اَپ او دوپ برابرول** :- (اص) (۱) یو څیز د یو بل طرف نه په کړاؤ برابرول (۲) په چل ول یو څیز تر لاسَ کول۔

**اَپت** :- (اَ +پَتْ) [ اف : پ (قاموس) ، ع: آفت ، اس ص ، مذ ،وا ، ج: آپتونه] (و ـــ آفت)

**ـــ رسېدل** :- (اِص) (و ـــ آفت رسېدل)

**ـــ نازلېدل** :- (اِص) (و ـــ آفت نازلېدل)

**ـــ وهل** :- (اِص) (و ـــ آفت وهل)

**ـــ وهلے** :- (اَ + پَتْ + وَ + هْ + لے) [ اف ، پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ج : اپت وهلي] (و ـــ آفت وهلے)

**اپرا** :- (اَپْ + را) [اف،پ (قاموس) ع : عفریت ، اس،مذ،وا افرا،دېو پېرے ، شېطان

**ـــ دېو** :-(اِص) (۱) غټ دېو (۲) ډېر خوراکي سړے ،خېټه ور، ګېډه ور، خېټو ، د خېټې چټو ، لکه : "فلانے اپرا دېو دے نهٔ مړېږي"۔

**اَپرې باپرې** :- (اَپ + رې + باپ + رې) [ پ (مر) اص ] ډزې ډوزې ، بډائي لوئي ، لوئې خبرې ، ځان نه زیاتې خبرې۔

**ـــ کول** :- (اِص) ډوزې ویشتل ، بډائي کول ، د خپل حېثیت نه زیاتې او اوچتې خَبرې کول۔

**اَپریدے** :- (اَپْ+ ري + دے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اپریدي ، اپریدیان یا اوپریدي] (و ـــ آفریدے)

**اَپرېشن** :- (اَپ + رې + شَنْ) [ انګ Operation اس ، مذ ، وا ، ج : اپرېشنونه ، اپرېشنینه ] څیرل ، د جراحي عمل ، لکه : " فلاني د خېټې اپرېشن وکړو "

**ـــ کول** :- (مص تر) (۱) د جراحي عمل کول ، د علاج دپاره د بدن څهٔ حصه په ډاکټر څیرل (۲) د علاج دپاره د چا بدن په چاړې ، چاقو څیرل ، اپرېشن کېدل هم استعمالېږي۔

**اَپرېل** :- (اَپْ+ رې + لْ) [ انګ :April ،اس ، مذ ، وا ] د عیسوي کال څلورمه میاشت ، (چېتر او ایساکۍ)

**اَپړه دوپړه** :- (اَ +پْ + ړَ + دُ+ پْ + ړَ) [ پ ، اص ] اړتو پړتو ، ګډې وډې ، خوشې وینا ، دوړې ویشتل ، ډُوزې ویل ، فضول خبرې۔

**اَپړیت چپړیت** :- (اَ+ پْ+ ړِيْ+ ت + چَ+ پْ+ ړِيْ+ تْ) [پ (سو) ص، مذ وا ] چیت پیت ، چخړېدلے ، یو څیز لکه لوټه ، د سلورو تالۍ یا موټر وغېره چې د زور اخستلو په وجه چپړ شي یا وچخړېږي نو ورته اپړیت چپړیت [چِپَیت] وائي۔

**اَپسوس** :- (اَپْ + سو+س) [ پ ، فا + پهه ، افسوس ، پازند ، اَوَسوس ، مذ، وا ، ج : اپسوسونه ] د خفګان او د ارمان ټکے لکه :" ډېر اپسوس دے چې هغه رانغے "۔

**ـــ کول** :- (مص تر) افسوس کول ، خفګان ظاهرول ، همدردي ښکاره کول۔

**اَپلاتې** :- (اَ+ پْ + لا + تې) [ اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ ] کاواکې ، الوتې ، ناشولتې، افلتې ، پوچې خبرې ، سپکه وینا ، لکه : " دا تهٔ څهٔ اپلاتې وائې "۔

**اَپلاطون** :- (اَپْ + لا + طُو + نْ) [ پ + یُو : پلاټون ، انګ : پلېټو ، وز:

اپلېټن ، اس ، مذ ، وا ] (۱) د یونان مشهور فلسفي (۲) اص : ډېر هوښیار ، د طنز په ډول کلانکارو ته وائي ـ لکه : '' د ځان نه ئي اپلاطون جوړ کړے دے ''۔

**اَپلت** :- (اَپْ + لَتْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ وا: اپلته ، ج: اپلتې) ] (بکواسي) هغه څوک چې فضولې خبرې کوي ۔ پُوچ خولے بد زبانه، کنځل مارے ، پُوچ ، واهیات ، ټټو۔

**اَپلتند** :- (اَپْ+لَ+تَنْ+دْ) [اف: پ (قاموس) اس ص ،مذ ،وا ] (و ـ اپلت)

**اَپلته** :- (اَ + پَلْ+ تَ) [پ ، اس ، اش] هغه پلۆ ته ، هغه طرف ته ، هغې مخې ته ، هغې خوا ته ، هغه اړخ ته ، اَپله۔

**اَپلته** :- (اَپْ+ لَ+ تَ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ ، وا ] (و ـ اپلت)

**اَپلتې غپلتې** :- (اَپلتې + غَپْ+ ل + تې) [پ (سو) ، اص ] پُوچه وېنا ، ګډې وډې خبرې ، سپکې خبرې ، بې فائدې وېنا ، الابلا وئیل۔

**اَپلتې وئیل** :- (اَپْ+ لَ+ تې + وَ + يَ+ لْ) [پ ، اص ] پوچې خبرې کول ، سپکه وېنا کول ، ناشولتې ویشتل ، افلتې وئیل۔

**اَپله** :- (اَ + پَ+ لَ) [پ ، اس ، اش ] (و ـ اَپلته)

**اَپن** :- (اَ + پَنْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ] (۱) تجربه کار ، پوهه ، مړنے ، مېړنے ، اُستکار ، (۲) آواره ګرد ، فضول ، خوشے۔

**اَپوټ سپوټ** :- (اَ + پُو+ ټْ+سَ + پُو + ټْ) [پ (سو) ص ] ګډَ وَډ ، اپوټه ، سپوټه ، اړولے ، اوړولے ، ډډې وډې ۔ لوټ په لوټ ،

**ـــ کول** :- (اص) لوټ په لوټ کول ، اړخ په اړخ اړول ، انډ په انډ کول اپوټه سپوټه کول ، ډډې په ډډې اړول۔

**ـــ کېدل** :- (اص) لوټ پوټ کېدل ، اړخ په اړخ اړېدل ، انډ په انډ کېدل ، اپوټه سپوټه کېدل۔

**اَپوټه** :- (اَ + پُو+ټَ) [پ ، ه : اُلټا ، ص ] (۱) اړولے ، پرمخې ، څټ ، بل مخ، (۲) برخلاف ، مخالف ۔ د سمې خبرې نه اوړېدلے یا ګرځېدلے ۔ (۳) سرګردان ، سر وهلے بروهلے

زۀ اپـوټه یم په هجران سره قرار نۀ لرم

هجر مې اوړېد شو وصال د امېد کارنۀ لرم (اکبرزمینداوري)

**ـــ ګنه** :- (اص) (بازاري) پرمخې ، په بل مخ ، بُوټه کونه ، په بل انډ

**ـــ کول** :- مص تر (۱) اړول ، پرمخې کول ، په څټ کول ، په بل مخ کول (۲) بر خلافه کول ، د سمې خبرې اړول ، لمسول (۳) سرګردانه کول ، سر وهلے بر وهلے کول۔

**ـــ کېدل** :- (مص تر) (۱) اړېدل ، پرمخې کېدل ، په څټ کېدل ، په بل مخ کېدل (۲) بر خلافه کېدل ، د سمې خبرې نه اړېدل (۳)سرګردانه کېدل ، سر وهلے بر وهلے کېدل۔

**اَپوټه سپوټه** :- (اَ+پُو+ټَ+سَ+ پُو + ټَ) [پ (ګن) اص ] (و ـ اپوټ سپوټ)

**اَپوزۍ** :- (اَ + پُو+زۍ) [پ ، اس معر ، مؤ ، وا ] په بلوچستان کښې د يو ځاے نوم چې په فورټ سنډیمن هم یادېږي۔

**اَپه** :- (اَ + پَ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ ] (۱) هپه ، تلاش ، غوښتنه لټونه،لټون (۲) حمله،ډاکه (۳) چیغه،چغه (۴) عفوه،معافي، بخښنه۔

**ـــ کول** :- (اص) (۱) هپه کول ، تلاش کول ، د چا لټول ، د څۀ څیز غوښتل ، لټون کول (۲) حمله کول ، ډاکه اچول ، په چا ورختل ۔ (۳) چا پسې چیغه ویستل ، په چا پسې په چیغه تلل ، په غلو پسې په هېړ وتل ، (۴) د ماشومانو په ژبه خوړلو ته وائي۔

**په ـــ تلل** :- (اص) (۱) په تلاش کښې وتلل ، د لټون دپاره تلل ، (۲) چغه کول ، په غلو پسې په هېړ وتل۔

**اَپه دپه** :- (اَپه+دَ+پَ) [اف ،پ (قاموس) اص ] (۱) رفع دفع (۲) دُوړه دپکه ، پښې دربول ، دپکه دړیکه۔

**اَپي** :- (اَ +پي) [اف : پ (قاموس) ع : افعي ،اس ،مذ ، وا] ښامار ، لوے مار ، اژدها

چې چندن لره ورځي خپل سر به بائیلي

د اپي مـارانو ځاے د چندن سبورے (ملاحسن)

**اَپي جي** :- (اَ +پي + جي) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اَپچیان ، اپچیون ] لغ : حافظ جي ، د قرآن پاک حافظ ۔ اص : (۱) پیدائشي ړوند ، هغه څوک چې د مور نه ړوند پیدا وي ۔ ړوند سړے ۔ (۲) سو: برکتي ړوند سړے ۔ دروندسړے۔

**اَپیدل** :- (اَ +پي + دْ + ل) [پ (وز) مص لا] لغ : غپېدل ، غپ غپ کول ، نعرې یا چغې وهل ۔ اص : په چا پسې شا خبرې کول ۔ د چاپه غېر موجودګۍ کښې بد وئیل ۔ غیبت کول۔

**اَپیز** :- (اَ +پي + زْ یا ا+ پي + ز) [پ ، ع : حافظ ، اس ، مذ، وا، ج: اپیزان یا اپیزون] لغ : حافظ ، هغه څوک چې قرآن شریف ئې یاد کړے وي۔ اص : (۱) پیدائشي ړوند ، د مور د خېټې نه ړوند پیدا شوے ۔ (۲)سو: هغه ړوند سړے چې بې برکته وي ۔ د سپکاوي نوم۔

**اَپیل** :- (اَ + پي + ل) [ انګ ،Appeal ، اس مذ ، وا ، ج : اپیلونه یا اپیلینه] عرضي ، د یوې فیصلې خلاف لوے عدالت ته درخواست

**اَپیلل** :- (اَ + پي + لَ+ لْ) [اف : پ (قاموس) مص ] لواړ تېرول ، څۀ څیز روغ تېرول ، ښوئے تېرول ، نغړدل ، الواړ تېرول ، انغرل ۔ ما: واپیلۀ ، حا: اپیلي، ا : وبه اپیلي ، امر : وُاپیله۔

**اَپیلونکے** :- (اَ +پي + لو + ن + کے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج: اپیلوُنکي ]څۀ څیز لواړ تېروونکے،روغ تېروونکے،ښوئے تېروونکے ، نغړدونکے

**اَپیم** :- (اَ +پي + م) [اف : پ (قاموس) ع : افیون ، اس ، مذ ، ج ] افیم ، افیون ، اپین

**ـــ کول** :- (اص) اپیم جوړل ، اپیمي کېدل ، د اپیمو عملي کېدل۔

**په اپیمو را اوړېدل**:- (اص) په اپیمو عادت کېدل ، د اپیمو عمل کېدل

**د اپیمو نه خلاصېدل**:- (اص) اپیم پرېښول ، د اپیمو نشه پرېښول۔

**اَپیم چي** :- (اَپیم + چي) [پ (روسي قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج: اپیم چیان ] افیمي ، اپیمي ، اپیم خور ، اپیم خوړونکے ، د اپیمو عمل کوونکے۔

**اَپیم خور** :- (اَپیم + خو + ر) [پ ،فات ، افیون خور ، اس ص مذ ، وا ] اپیم خوړونکے ، اپیمي ، اپیم خېر ، د اپیمو عملي۔

**اَپیمي** :- (اَ +پي + مي) [پ ، اس ص ، مذ ،وا ، ج : اپیمیان یا اپیمیون ](۱) اپیني ، عملي ، افیمي ، اپیم خوړونکے ، هغه څوک چې په اپیمو عادت وي ۔ لکه : ''هغه دے اپیمي را روان دے ۔'' (۲) اودۀ شان سړے ، پوستي

**اَپین** :- (اَ +پي + ن) [پ ، ع : افیون ، اس ، مذ ، ج ] اپینیان یا اپینیون ]( و ـــ اپیم)

**اَت** :- (اَ + تْ) [پ ، د ژغ ټکے ] د ماشومانو پـه ژبــه کښې وئیـلے شي ۔ لکه :''ات تا دے ، ایت تا دے ، ایت تا پا غه''

**اَتاشي** :- (اَ + تا + شي) [ فر : اتپچي ، اس ، مذ ، وا ] د سفارت خانې يو ذمه وار غړے

**اَتاک** :- (اَ + تا + کْ) [ اف : پ ، ع : طاق ، اس ، مذ ، وا ] ځاے ، کور ، متل : "له بې باکو مې ځۀ باک شي چې پردے کور ئې اتاک شي"

**اَتام** :- (اَ +تا + مْ يا اَ + تو + م) [ پ ، ع : طعام ، اس ، مذ ، وا ، ج : اتامونه يا اتومونه يا اَتومينه ] خوراک ، روزي ، رزق۔[تخم ، تومنه ، اتوم]

**اِتبار يا اتبور** :- (اتْ +بار يا اتْ +بو+ر) [ پ ، ع : اعتبار ، اس، مذ ، وا] (۱) باور ، يقين ، تسله

د مجاز په خوبرويانو ځۀ اتبار دے (علي خان)

(۲) ه : اتوار ، اِتبور ، په خالي پسې ورځ ، لکه:" د اِتبار په ورځ د دفترونو چُټي وي"۔

**ـــ پاځېدل** :- (اص) (۱) بې اتباره کېدل ، بې باوره کېدل (۲) د چا سړي نه د خلقو بې اتباره کېدل۔په چا د عامو خلقو باور نۀ کول۔اتبار پورته کېدل۔

**ـــ راوړل** :- (اص) يقين کول ، باورکول ، تسله کول۔

**ـــ کول** :- (مص تر) يقين کول ، باور کول ، په خبره تسله ځرګندول۔لکه : "په هر چا اتبار کول په کار نۀ وي"۔

**ـــ ورکول** :- (اص) د چااتبارختمېدل ، بې اتباره کېدل ،په ځۀ وجه خپل باور ورکول

**بې اِتباره** :- (بې + اتْ + با + رَ يا اتْ + بو + رَ) [پ، اص] بې باوره ، بې تسلې ، هغه څوک چې پرې باور يا يقين نۀ شي کېدے ۔ لکه :" فلانے بې اتباره ثابت شو"۔

**اِتباري** :- (اتْ + با + ري يا اتْ + بو + ري) [ پ ، اس ص ، مذ ، مؤ ، وا ، ج: اتبارِيان يا اتبوريون ] هغه څوک چې يقين يا باور پرې کېدے شي۔تسله ناک۔لکه : " احمد اتباري سړے دے "۔

**اَت پريز** :- (اَتْ + پَ + ري + زْ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج] د اتو پرو واله۔ هغه څيز چې اتۀ پرې لري۔(د اتو اړخونو واله)

**اَتخنډ**:- (اَتْ + ښَ + نْ + ډْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج ] (و ـــ ات پريز)

**اِتحاد**:- (اتْ + ت + حا + د) [ع ، (روسي قاموس) ص ، مذ ، وا ] اتفاق ، يو والے ، د يو بل سره تړون ، په خپلو کښې د ځۀ کار دپاره يو کېدل

متحد ســره پــه هسې اتحاد شو

چې بې غم د جدايۍ له فساد شو (حميد)

**اِتحاد شوروي**:- (اتحاد + شو + رَ + وِي) [ اف : پ ، اس ، مذ ، وا ] روس ، د روسيانو جمهوريه۔

**اَتر**:- (اَ+ تَرْ) [ پ ، ف ، مهم ] دا ټکے ځان ته هيڅ معنٰی نۀ لري۔د خبر سره روستو وئيلے شي۔لکه : " د فلاني ځۀ خبر اتر شته که نۀ ؟ "

**اَترک بَترک**:- (اَتْ + رکْ + بَتْ + رکْ) [ اف : پ (قاموس) اس ص،مذ ، وا ، ج (مؤ ، وا : اَترکه بتَرکه ، ج : اَترکې بترکې) ] غريب ، بې وسيلې ، ميرات ، اوترک۔

**اَترنګ**:- (اتَ + رَنْ + ګ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، ج : اترنګې ] (۱) د نکريزې ګل (۲) يو بوټے دے چې د رنګولو په کار راځي او په دارو کښې هم استعمالېږي۔

که د مئين په وينو رنګ دي

زړونــه اوکاږي په منګل ها (نور صاحب)

(۳) په سوات کښې يو بوټے دے چې اَته قسمه ګلونه نيسي۔

**اَترول**:- (اَتْ + رَ + وْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص ] خبرول ، د خبرول سره استعمالېږي۔لکه : " خبرول اترول۔"

**اَتره**:- (اَ + تْ + رَ) [ پ ، ف مهم ] يواځې نۀ استعمالېږي۔د خبرې سره وئيلې شي لکه : " ځۀ خبره اتره شته ؟ "

**اَتره**:- (اَتْ رَ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ] (۱) لوے خاورين ښانک چې ګوړه په کښې جوړېږي۔

پور پوخ شي په کړي کښې جوش په پورته ووهينه

ګوړي ئې په خمڅې باندې زر اوولي په اتره کښې (ظفر)

(۲) اف : د وجود پورتنۍ حصه ، د ملانه تر غاړې پورې تنه۔

**اَتربدل**:- (اَتْ + رې + دْ + لْ) [ اف ، پ (قاموس) تا مهم ] د خبرېدل مصدر سره استعمالېږي۔لکه : " خبر بدل اتربدل "

**اِتفاق**- (اتْ + ت + فا + ق) [ ع ، اس ص ، مذ ، وا ] يو والے ، يو موټے ، اتحاد ، رضامندي ،

هره چار د پښتنائۀ تر مغل ښۀ ده

اتفاق ورســره نشته ډېر ارمان (خوشحال)

**اتفاقي**:- (اتْ + ت + فا+ قي) [ پ تر ، ص ] (۱) ناڅاپي ، بې ارادې ، لکه:" زۀ اتفاقي هلته پېښ وم " (۲) هغه کار چې د کولو نيت ئې نۀ وي شوے۔ لکه: "بد نصيبه اتفاقي رانه اولګېدو"

**اَتکړۍ** - (اَتْ + کَ + ړَ + ی ، يا ړَ + ئے) [ پ ، ه : هتهـ کړي يا هتکړي ، اس مؤ ، ج ] هغه د اوسپنې زنځير چې ملزمان او قېديانو ته په لاس کښې واچولے شي او دوي پرې وتړي۔

**اَتکش**:- (اَتْ + کَشْ) [ اف : پ (قاموس) اس مذ ، وا، ج : اتکشونه ] د اور [هورا] د لړلو او کيرلو سيخ ، اور لړونے۔

**اَتکو**:- (اَتْ + کو) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ،مؤ ، وا ] د مور يا د مشرې ښځې د بللو ټکے ۔ داټکے اکثر ماشومان استعمالوي ۔ ادکو ، ادکه، ادکۍ ،

**اَتکۍ**:- (اَتْ + کۍ)[اف:پ (قاموس) اس،مذ،مؤ ، وا ] (و ـ اتکو)

**اَتګونے** :- (اَتْ+ ګُو + نے)[پ ، اس ، ص] اف : اتمه برخه۔

**اَتل** :- (اَ + تَ + ل) [ اف ، پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اتلان ، (مؤ، وا: اتله ، ج : اتلې) ] سيال د پخې ارادې خاوند ، د پوخ يقين واله ، د پوخ لوظ واله ، لوے ، زبردست۔

زۀ يم زمرے په دا نړۍ له ما اتل نشته (امير کروړ)

**اَتلس** :- (اَ + تْ + لَسْ) [ پ ،اس عد، مذ ، ج ] اتۀ او لس ، اتلس ، دوه کم شل۔ اتۀ لَس

چې په عمر شوم اتلس د شباب په عنفوان (خوشحال)

**ـــ زره قامه** :- (اص) ډېر قامونه ، د ډېرو قامونو خلق ،

**ـــ فکره** :- (اص) خيال ، په زړۀ کښې۔

دا د هيچا په اتلس فکره نۀ وه

چې به دا کارونه شي په دا ديار (خوشحال)

**اَتلسم** :- (اَ + تْ + لَ + سَ + مْ) [ پ ، اس ، عد ، مذ ، وا (مؤ ، وا : اتلسمه] په اتلسم ځاے ، په دوه کم شل نمبر۔چې اوولس ترې وړاندې وي۔ لکه :" زما کارډ په اتلسم نمبر پروت دے "

**اَتم** :- (اَ + تَ + م) [ پ ، اس : اَشْتُمْ ، اس ، عد ، مذ ، وا (مؤ، وا: اتمه ] ووتم ، په اتم وار ، په شمېر کښې په اووۀ پسې۔لکه : "زما زوے په اتم جماعت کښې دے "

**ـــ آسمان** :- (اص) (۱) زيات اوچت ، دنگ (۲) د گرد يا لوگي په وجه بل آسمان په نظر راتلل.
بل آسمان اتم پيدا شو كبود فام (خوشحال)

**ـــ انم** :- لغ : په شمار كښې اتم يا اَنم ، ووتم نم.اص: فكر ، غم ، يره .
كه څلور دي كه پنځۀ كه شپږ اووۀ دي
د درويش نيشتـــه دا هېـــڅ اتـــم انـــم (خوشحال)

**اُتمان** :- (اُتْ + ما + نْ) [اف : پ (قاموس) ع : عثمان ، اس ، مذ ، وا ] اُتمان خېل ، اُتمان نامه او اُتمان زي.د پښتنو قبيلې دي.
په يوسف منډنې ئې غرړۀ د مړانې
اتمان خــېلو تېښتـه كړه ددۀ له ډسه (علي خان)

**اَتمبار** :- (اَ + تَمْ + با + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: اتمبارونه ] (۱) ټولے ، گڼه گوڼه.د ډېرو خلكو په يو ځاے جمع (۲) هنگامه.

**اَتڼ** :- (اَ +تَ + نْ + ړْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اتڼونه يا اتڼينه ] گډا ، نڅا ، دريس ، بنگړه ، بلبله ، شاډوله.
راشه په فضا كښې د مرغانو اتڼ اوگوره (حمزه)

**ـــ اچول** :- (اتڼ + اَ + چَ + وُ + ل) اص : گډا كول ، گډېدل ، نڅا يا بنگړه بلبله كول ، شاډوله اچول ، د چَنو گډا.د طالبانو گډا.

**ـــ تودول** :- (اص) گډا تېزول ، تېز تېز گډېدل ، په نڅا كښې په جوش كښې راتلل.

**په پردي ـــ كښېوتل** :- (اص) په پردۍ خبره كښې ځان ورگډول.د چا په خبرو كښې خامخا ځان ورگډول.په پردو معاملو كښې گوتې وهل.

**اَتنيم** :- (اَتْ + ني + مْ) [ پ ، اس ، عد ] اتۀ او نيم ، نيم د پاسه اتۀ ، اتۀ پوره او بل نيم

**اَتوب** :- (اَ + تو + ب يا اَ + تې + ب) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: اتوبونه يا اتبېينه ] (۱) نرمه خوړه لېټۍ ، د اوړو شيره ، گړوبۍ ، لېټۍ ، د دوڼې خرخراوے (۲) اص : بې مزې خوراک ، بې خونده څيز د غريبانانو خوراک.
واړه شونډې په لذت سره يو نۀ دي
څوک حـلوا دي د نباتو څوک اتوب (خوشحال)

**اَتوبړے** :- (اَ + تو + ب + ړَے) [پ ، اس ، تصغير ، مذ ، وا ] د اتوب سپک نوم ، نرم اتوب ، بې خونده او بې مزې اتو،ب.

**اَتوڼے**:- (اَ+تُو + نْ + ړے) [ اف ، پ (قاموس) اس ص،مذ،وا ،(مؤ ، وا : توڼه ) ] آخري ، د ټولو نه ورستو ، لكه : '' هغه اتوڼے سړے لوے عالم دے '' .

**اَتويشتم** :- (اَ + تَ + ويش + تَم) [ پ ، اس ، عد] په شمار كښې په شل او اتم لمبر په قطار كښې دوه كم دېرشم .لكه : '' په اتويشتم به د جمعې ورځ وي.''

**اَتۀ** :- (اَ + ت) [پ ، اس ، عد ] د شمار اتم عد ، په اوۀ پسې عدد .دوه كم لس .لكه : '' اتۀ روپۍ واخله ''

**اَتّه** :- (اَ + تَ) [پ ، ع : احاطه ، اس ، مؤ ، وا ] (۱) احالطه ، غولې ، تالاے ، انگڼ ، (۲) دواړه لاسونه چې پوره خوارۀ كړے شي (سو) (۳) د لاس د گوتې نه تر اوږې پورې (اف : قاموس)

**اَتّه كول** :- (اَته + كَ + و + ل) [ اف : پ (قاموس) اص ] د لاس په مېچه كچ كول د لاس په گز ناپ كول ، په اتو كول.

**په اَتو كول** :-(پَ+ اتو + كَ+و ، ل) [پ (سو) اص] (و ـــ اته كول)

**اَته ور** :- (اَتَه + وَ + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، (مؤ : وا : اته وره ، ج : اته ورے) ] اوږد لاسے ، هغه څوک چې لاسونه ئې اوږدۀ وي.

**اَتۀ ويشت** :- (اَ+تْ +وي + ش+ت) [ پ،اس،عد ] شل او اتۀ،دوه كم دېرش
اتۀ ويشت لرم زويه نشته يو د بل په رنگ (خوشحال)

**اَتي** :- (اَ + تي) [ پ ، ه : هاتي ، اس ، مذ ، وا ، ج : اتيان يا اتيون ، (مؤ ، وا: اتيه ، ج : اتيې) ] غټ ځنگلي ځناور چې اوږد خړتم لري.

**اَتيا** :- (اَتَ + يا) [ پ ، اس ، عد] څلور شلې ، څلور شله ، څلور ځلې شل شل ، شل كم سل.
په كښې روغ په اتيا كالو بيمار شي (خوشحال)

**اِتيات** :- (اتْ + يا + ت يا اَت + يا + ت) [ اف ، پ (قاموس) ع : احتياط ، اس مذ ، وا ، ج : اتياتونه ] احتياط ، پام ، فكر ، پروا ، خيال.

**اِتياتي** :- (اتْ + يا + تي) [ اَف ، پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، مؤ ] پام كوونكے ، فكر لرونكے ، هوښيار ووسېدونكے ، بېدار.

**اَتياؤنه** :- (اَتْ + ياؤ + نَ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص] د اول نه ، د شروع نه ، د مخې نه.

**اَټارۍ** :- (اَ ] ټا+ رۍ يا رَے ) [ پ ،ه ،اس ، مؤ ، وا ] (۱) ټاپو ، ټورۍ ، بالاخانه ، برج ، د كوټې دپاسه بله كوټه (۲) د كلي نه يو طرف ته د څوكۍ اوچته كوټه (شن) (۳) د پنايۍ دېوال ، چوكانده .

**اَټال** :- (اَ + ټا + ل يا اَ + ټو + ل) [ پ ، ص ، مذ ، مؤ ، اټاله ] اټول ، بند ، تم ايسار ، ماتل ، ځوړند ، اودرېدلے ، ايله په بانه ايسار.
څـو شاه خـــوبـان بالبنت له رانۀ شي اله
ســاه مې پــه صورت كښې ترهغې اټال لره (علي خان)

**اَټالتيا** :- (اَټال + يا اَټول + ت+ يا) [ پ ، حمص ] ايسارتيا ، بندېز ، د څۀ څيز د كمې په وجه كار ايسارېدل ، ماتلتيا.

**اَټالول يا اَټولول** :- (اَ + ټا + لَ+ و + ل + يا اَ + ټو + لَ+ و + ل) [پ، مص مت] تم كول ، ايسارول ، ماتلول ، بندول ، ځنډ من كول ، اودرول ، ځوړندول ، ما : اټال كۀ ، حا : اټالوي ، ا : اتال به كي ، امر: اټال كه.

**اَټالونه** :- (اَ + ټا يا ټو + لَ+ ؤ + نَ) [ اف ، پ (قاموس) حمص ] ايسارونه تم كونه، ماتلونه ، بندونه ، ادرونه ، ځوړندونه.

**اَټالوونكے** :- (اَ + ټا يا ټو + لَ+وو+نْ + كَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اټالوونكي ] ايساروونكے ، اودروونكے ، بندوونكے تم كوونكے ، ماتلوونكے.ځوړندوونكے.

**اَټاله** :- (اَ + ټا+لَ) [ اف : پ (قاموس )ص ] (۱) پرېشاني ، پرېشانه ،ځوړند سر ، غمجن ، فكر مند
دغه جن په فكر كښېناسته اټاله (عبدالغفار)
(۲) حمله (۳) په ټُوک مال خرڅول ، په ستېله مال خرڅول. (۴) د لرگو دلۍ (۵) د كور اسباب يو بل د پاسه.(۶) د بوجيو قط په قط دلۍ.

**په ـــ وركول** :- (اص ) په توک مال وركول ،په يوځاے مال خرڅول،په ستېله مال وركَول.

**اَټالېدل** :- (اَټا يا اَټو لې+ د + ل ) [ پ ، مص لا ] تم كېدل ، ايسارېدل ، ځوړندېدل.ما : اټال شۀ ، حا : اټالېږي ، ا : اټال به شي.

**اَټالېدن** :- (اَ + ټا يا ټو+لې +د +نَ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] (۱) بې ارامي (۲) ايسارېدنه،تم كېدنه،ودرېدنه ، ماتلېدنه ، بندېدنه ، ځوړندېدنه.

**اَټالېدونكے** :- (اَ + ټا يا ټو + لې + دُو + نْ + كے) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اټالېدونكي ] ايسارېدونكے ، ماتلېدونكے ، تم كېدونكے ، ودرېدونكے ، بندېدونكے ، ځوړندېدونكے .

**اَټالیدهٔ** :- (اَ+ټا+یا ټو+ لي + د) [اف :پ (قاموس) حمص] (و ـ اټالیدنه)

**اَټاؤ کېدل** :- (اَ + ټا + ؤ + کې + د + ل) [پ ، مص ، تر ، لا ، اص] ایسارېدل ، تم کېدل ، ودرېدل ، لکه : " د یزیدلښکر اټاؤ شه په مچوغنو " (اخون قاسم)

**اَټاهي** :- (اَ+ټا+هي) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] ځانګونه، ځنګویه

**ــــ کول** :- (مص تر) (۱) دماشوم په ځانګو کنبې اودهٔ کول (۲) ځانګو ته جُوټه یا دیکه ورکول-ځانګو ځنګول-

**ــــ کېدل** :-(مص تر) (۱) دماشوم په ځانګوکنبې اودهٔ کېدل (۲) ځانګو ته جُوټه ورکېدل ، ځانګو ځنګېدل-

**اَټ سټ** :- (اَټْ + سَ + ټْ) [ه ، اص] چل ول ، هسې دسې ، (دا تورے اکثر په بېوپار کنبې استعمالېږي)

**ــــ جنګول** :-(اص) ور غرجنګول،بغېر دځهٔ وجې یاثبوت نه خبره کول

**ــــ کول** :- (اص) خبره جوړول ، په یو څیز خپلو کنبې رضا کېدل ، معامله جوړول -سودا جوړول-

**اَټسکے** :- (اَ + ټَسْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ،وا، ج: اټسکي] تروشے ، پرنجے ، نژے ، نترے ، اینګے ، انټوشے-

**ــــ کول** :- (مص تر) تروشے کول ، پرنجے کول ، نژے کول ، اینګے کول، نترے کول ، انټوشے کول-

**ــــ وهل** :- (مص تر) تروشے کول ، پرنجے کول ، نژے کول ، نترے کول ، اینګے کول ، انټوشے کول-

**اَټک** :- (اَ + ټَ + ک) [ه : بندېز ، اس ، مذ ، وا] (۱) د قبلئیز پاکستان یوه ضلع (۲) د اباسین په غاړه یو ځاے -اباسین ته هم په څهٔ ځاے کنبې اټک وائي-

د اټک پـــه منـاره بـه نظر نـهٔ کا
چې هغهٔ ته د ډلي ملک څرګندوي (خوشحال)

**داَټک سین** :- (اص) اباسین-

**اَټکل** :- (اَټْ + کَ + ل) [پ ، ه ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اټکلونه یا اټکلینه] (۱) چل ، طریقه ، پوهه ، لکه : " دموټر چلولو اټکل راځي " (۲) څېړنه ، پېژندل ، خیال ، قیاس

چې دا درې تـــوکي لري اټکل مې نهٔ شي
چې به خداے رسول راضي نهٔ وي له دهٔ نه (خوشحال)

**ــــ بنیل** :- (اص) چل ښیل ، طریقه ورزده کول-پوهه کول-

**اَټکلا** :- (اَټْ + ک + لا) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ ، وا] د اندازې لګولو حالت ، د قیاس کولو حالت یا کېفیت (قدیم)

**اَټکلول** :- (اَټْ + کَ + لَ + و + ل) [اف : پ (قاموس) مص مت] ازمېیل تجربه کول ، تخمینه کول ، اندازه لګول ، آزمائش کول ، ګمان کول ، ما : و اَټکلوهٔ ، حا : اټکلوي ، ا : اوبهٔ اټکلوي ، امر : ؤاټکلوه-

**اَټکلونه** :- (اَټْ + کَ + لَ + و + نَ) [اف : پ (قاموس) حمص] ازمائینه ، اندازه ګمان کونه ، تخمینه ، تجربه-

**اَټکلي** :- (اَټ+کَ +لي) [اف :پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا+ج] (۱) چلولي چالاک ، چلباز (۲) پوهه ، د اټکل نه کار اخستونکے ، اټکل باز -

**اَټکلېدل**:- (اَټ+کَ+لې+د+ل) ] اف :پ (قاموس) مص لا] اندازه لګېدل ، تخمیه کېدل ، ازمائش کېدل،ګمان کېدل ، معلومېدل ، تجربه کېدل

**اَټک مټک** :- (اَټک ، مَ + ټک) [پ (خل) اس ، مذ ،وا ، ج] صدبرګ ، ستبر ، صد بر (ګېندا) یوګل چې رنګ ئې زیړ وي-یو زیړ شان ګل-

**اِټکی** :- (اِټْ یا اَټْ + کی یا کئے) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج] (۱) سَلګی ،د اټکی مرض (۲) اټکی راتلل ، کول ، سره استعمالېږي

**اُټکے** :- (اُټْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اټکي] د لوګي د وتلو لار ، چمني ، انګیټی ، لوګي خانه-

**اَټل** :- (اَ+ ټَ+ ل) [اَف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا] (و ــــ اټل)

**اَټنشن** :- (اَ + ټِنْ + شَ+ نْ) [انګ (روسي قاموس) فوځي اص] ابغ نبغ ، دا یو فوځي غږ دے -چې په دې باندې فوځیان خپلې دواړه پښې یو ځاے کړي او لاسونه هم د ځان سره جخت کړي اونبغ ودرېږي-

**اَټوری** :- (اَ + ټو + ری+ یا رئے) [پ ، اس ، مؤ ، وا] برېښېدل یا د بند نه وتلي هډوکي ته د تارونو اټه وراچول او تاؤ ورکول-

نور زما په زخمي زړهٔ قبېدونه مه ږده
اټوری اچوي څوک په خوږ زولن لاس (علي خان)

**اَټه** :- (اَ + ټَ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] جواري چې ببهو یا شپشتو سره کولے شي-

**اُټه** :-(اَ + ټَ) [اُف :پ (قاموس) اس] (۱) (و ــــ اټوری) (۲) د تار ګونجی

که یو تار سپنسي طلب کړم نهٔ ئې مومم
هغـه هــم ومـــاتـــه ګـران لکه اټـه شي (زمند)

**ــــ اچول** :- (مص تر) د بې ځایه جوړونو په ځاے کولو دپاره اټه اچولے شي- لکه : " آوړېدلي پښې ته اټه اچول په کار دي "-

**ــــ پنبېز** :- (اَټه+ پَنْ + ډې + ز) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] زهر بوټه ، یو بوټے دے-

**ــــ سټه** :- (اَټَ +سَ +ټَ) [اف : پ (قاموس) اص] سټله ، نُوکه شوکه د کور ماته ګوډه ، وړوکے وړوکے کار ، کور ته څهٔ ماته ګوډه راوړل-

**ــــ سټه کول** :- (اټه سټه + کَ + ؤ + لْ) اص-ګذاره کول ، د ژوند شپې ورځې په چل ول تېرول-

**اَټی** :- (اَ + ټَ + ی+ ئ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] (۱) د تار ګونجی یا ترنجی ، د تار ګونځی-(۲) دوکان ، اټ ، کبراړه-

**ــــ اچول** :- (ټی + اَ + چَ + ؤ + ل) [پ ، اص] دوکان خلاصول ، دوکان شروع کول ، دوکان پرانستل-

**ــــ ماتول** :- (اَټی ، ما + تَ + ؤ+ ل) [پ ، اص] د دوکان نه غلا کول د دوکان تنبې د غلا په نیت ماتول ، د دوکان کنډر کول-

**ــــ ماتېدل** :- (اټی + ما + تې + د + ل) [پ ، اص] دوکان ماتېدل ، دوکان تنبې د غلا په نیت ماتېدل ، د دوکان کنډر کېدل-

**ــــ اټی** :- (اټی + اټی یا اټئے اټئے) [اف : پ (قاموس) اس ص] تاؤ راتاؤ ، ګُنجی ګُنجی ، لکه ورانه ماشوړه ، ماشوړه ګنځې ګنځې

**ــــ وال** :- (اټی یا اټي + وا + ل) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: اټي والان] دوکاندار -

**اَټې** :- (اَ + ټې) [پ ، اس ، مذ ، ج] بیاسته ، مزے ، پټی یا رسی چې ختلي جوړونه پرې په یو چل سره په ځاے کوي-

**ــــ اټې** :- (ا + ټې + اَ + ټې) [پ ، اس ص] ولونه ولونه ، ولینه ولینه ، تاؤ راتاؤ، ماتې ماتې زلفې-

اټې اټې زلفې دې توئې شوې
د پاغوندې په دود دې سر سپین شو مئینه (ټپه)

**ـــــ رنګېدل** :- (اَټي + رَنْ + ګې + د + ل) [ پ (سو) اص ] په چا باندې ډېره سختي
اونيستي راتلل. لکه: "په فلاني هسې اټي رنګېږي"

**اَټېران** :- (اَ + ټي + را + ن) [ اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا ] اټېرن، ډېرڼ، يو قسم څرخه چې ريشلې سپنسي پرې باندې ګُنجې کولے شي.

**اَټېرانول** :- (اَ + ټي + را + نَ + ؤ + ل) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] ګُنجي کول، په اټېران خېژول، سپنسي يا تارونه په ډېرڼ غړل، تارونه ګُنجي کول.

**اَټېرل** :- (اَ + ټي + رَ + ل) [ پ (راورتي) مص مت ] بدهضمي کېدل، د څۀ څيز خوړلو په وجه په خېټه کښې تکليف پيدا کېدل.

**اَټېرلے** :- (اَ+ټي+رَ+لے) [ اف: پ (قاموس) اس، مف مذ، وا ] (۱) اغېړلے، بدهضمه شوے. د زيات خوراک له کبله ګېډه خرابه شوې. (۲) اص : هغه خوراک چې هضم شوے نۀ وي.

**اَټېرن** :- (اَ+ ټي + رَ + ن) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ، وا ] (۱) اغېړه هغه ثوک چې خېټه ئې خرابه شوې وي. (۲) ډېرڼ، د تارونو يا سپنسو نه د ګُنجي جوړولو څيز (دا د لرګي نه جوړ وي او په يو لاس کښې نيولے شوے وي. په بل تاووي)

**اَټېرنه** :- (اَ + ټي + ر + نَ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] بدهضمي، د خېټې خرابي.

**اَټېرونکے** :- (اَ + ټي + رُو + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس، فا ع، مذ، وا، ج : اټېرونکي ] بدهضمه کوونکے، خېټه خرابوونکے.

**اَټېک** :- (اَ + ټي + ک) [ انګ : فوځي اص ] حمله، چپاؤ، اَپه

**ـــــ کول** :- (اص) (۱) حمله کول، چپاؤ کول، اَپه کول (۲) اعتراض کول.

**اَټېکه** :- (اَ + ټي + کَ) [ پ (سو) اس، مؤ، وا ] د پښې شنګرے يا ګيټي چې بې ځايه شي. نو په دې طريقه ئې اټېکه کوي او خپل ځاے ته ئې راولي

**اَټي ټي** :- (اَټي + نَ + ټي) [ اف : پ (قاموس) ص، مؤ ] ناز نخرې، نخرې پېښې، ناز او ادا، قېنج مکېز، اوټي پوټي.

**اَثر** :- (اَ + ثَ + رْ) [ ع، ص، مذ، وا، ج : اثرونه ] علامه، نخښه، نښاني، خوند
کــه اثــر ئې د لبــانـو په کښې نۀ وي
نۀ به دومره وو خوارۀ په انګبين کښې (عبدالقادر)

**ـــــ پرېښول** :- (اص) (۱) په څۀ څيز اثر کول، څۀ څيز زړۀ ته پرېوتل، څۀ خبره خوښول (۲) بې اثره کېدل، تاثير پرېښول.

**ـــــ کول** :- (اص) خاصيت ښکاره کول، څۀ څيز په زړۀ لګېدل، زړۀ ته پرېوتل، فائده کول.

**ـــــ کېدل** :- (اص) د څۀ څيز خاصيت ښکاره ېدل، يوه خبره زړۀ ته پرېوتل. فائده کېدل

**اَثر ناک** :- (اَثر + نا + ک) [ پ، اس، ص، مذ، وا، ج : (مؤ، وا : اثرناکه، ج : اثرناکې ) ] اثر کوونکے، اثر ښکاره کوونکے. زړۀ ته پرېوتونکے، فائده من. لکه : "ډېر اثر ناک تقرير ئې وکړو".
اثر ناکه د غمژن د زړۀ له آهَ (حميد)

**اَثري** :- (اَ + ث + ري) [ پ، ص ] (۱) اثرناک، اثرلرونکے، اثر کوونکے، (۲) هغه ثوک چې د پيريانو يا نور څۀ اثر يا سېورے پرې شوے وي (۳) بې عقله خبرې کوونکے، بې مطلبه غږېدونکے، پاګل، لېونے، لوېدونکے، ګويانه.

**ـــــ کېدل** :- (اص) پاګل کېدل، لېونے کېدل، د پيريانو يا د نور څۀ اثر يا سېورے پرې کېدل.

**اِجابت** :- (اِ + جا + بَتْ) [ ع، ص، مذ، وا ] (۱) قبلېدل، منظورېدل، څۀ خبره منل.
زما خواست په اجابت شۀ
د خداے مهر عنايت شۀ (صدر خان)
(۲) بهرته کښېناستل.

**اَجاب قبول** :- (اَ + جا +ب + قَ + بُو + ل) [ پ (ب، خ) ع : ايجاب و قبول، اص ] (۱) د کوژدن په وخت نکاح تړل، په دې کښې د هلک او جينۍ او کول يا رضا اخستل ضروري نۀ ده (بارک) (۲) نکاح کول، نکاح تړل، چې هلک او جينۍ دواړه رضا ښکاره کړي. د نکاح په وخت د هلک او جينۍ رضا اخستل.

**اِجاره** :- (اِ+جا + رَ يا اَ + جو + رَ) [ ع، اس، مؤ، وا، ج : اجارې ] (۱) ټېکه اماني، څــۀ څيز يا ځاے چې په يو ټاکلي نرخ او وخت بل ته ورکړے شي. لکه : " ما دوه جريبه زمکه په اجاره واخسته " (۲) اجازت، اختيار (۳) مشري، مشروتيا، ذمه واري.

**ـــــ اخستل** :- (اص) (۱) څۀ څيز اجاره کول (۲) د څۀ څيز ذمه اخستل يا ذمه کول.

**ـــــ خلاصول** :- (اص) (۱) د څۀ څيز د اجارې پيسې ورکول (۲) څۀ څيز د مقرر وخت نه پس د اجارې نه خلاصول او د مالک نه بېرته اخستل

**ـــــ کېدل** :- (اص) څۀ څيز د اجارې په ډول بل ته ورکېدل، څۀ ځاے بل ته حواله کېدل

**ـــــ ليکل** :- (اص) (۱) د اجارې کاغذ کښل، د اجارې ليک کول، اجاره خط (۲) ذمه اخستل، ذمه کول.

**په ـــــ خوړل** :- (اص) څۀ زمکه د اجارې په ډول په قبضه کښې ساتل او د هغې آمدن خوړل.

**اِجاره دار** :- (اجاره + دا + ر) [ فا تر، اس فا ع، مذ، وا، ج : اجاره داران، (مؤ، وا : اجاره داره، ج : اجاره دارې) ] (۱) په اجاره اخستونکے، کار دار. څۀ څيز په مقرر قيمت د مقرر وخت دپاره اخستونکے (۲) ذمه وار. ذمه اخستونکے، ناظر

**اِجاره داري** :- (اِجاره، دا + ري يا دو + ري) [ پ تر، اس ص، مؤ، وا، ج : اجاره دارۍ ] (۱) په اجاره د اخستلو کار (۲) مشري، د څۀ څيز ذمه واري

**اجاړ** :- (اُ + جا + ړ) [ ه، اس، ص، مذ، وا، ج، (مؤ، وا: اُجاړه، ج: اُجاړې] شاړ، وران، ويجاړ، اوجاړه، غېرآباد.

**اُجاړول** :- (اُ + جا + ړَ + ؤ + لْ) [ پ (روسي قاموس) مص مت ] شاړول، ويجاړول، ورانول، بربادول، لکه : " د څيز اُجاړول آسان دي. ما: اُجاړکۀ، حا : اُجاړوي، ا : اُجاړبه کي، امر : اُجاړ که.

**اُجاړېدل** :- (اُ + جا + ړې + د+ ل) [ پ (روسي قاموس) مص لا ] ورانېدل، شاړېدل، اوجاړېدل، غېر آباد کېدل، بربادېدل، ما : اُجاړ شۀ، حا: اُجاړېږي، ا : اُجاړ به شي.

**اِجازت** :- (اِ + جا + ز + ت يا اَ + جو + زا + ت) [ ع، اس، مذ، وا، ج: اجازتونه ] رضا، منښه، چا ته د څۀ کار کولو يا تللو اجازه، رخصت
پس له هغه بادشاه او کړو اجازت (نعمت الله)

**ـــــ اخستل** :- (اص) د څۀ کار کولو يا د تللو دپاره منظوري يا رضا غوښتل، رخصت اخستل.

**ـــــ غوښتل** :- (اص) (وـــ اجازت اخستل)

**ـــــ کول** :- (اص) اجازت ورکول، منظوري ورکول، پرېښول.

**ـــــ نامه** :- (ـــ نا + مَ) (فا، اس، مؤ، وا، ج : اجازت نامې ] ليکلے ورکړے

اجازت یا منظوري.

**اِجازه** :- (اِ+جا + زَ) [ پ ، مؤ ، وا ، ج : اجازې ] (۱) اجازت ، منظوري ، رخصت (۲) اُوده ، د دم درود اجازت.

**ـــ لرل** :- (اص) د دم اجازت لرل ، هغه څوک چې د دم درود اجازت ورځخه وي

**اَجاړنۍ** :- (اَ + جا + ن + ړی یا ړئے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: اجاڼیانې ] اجنه ، هغه ښځه چې اج یا حج ئې کړے وي.

**اَجائي** :- (اَ + جا + ئي یا ئے) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ ، وا ] د اُمېد کېدلو نه پس د ښځو یو خاص حالت ، کُول اوړېدل ، مچ تېرېدل ، زړهٔ چینچېدل .

**ـــ کېدل** :- (اص) د اُمېد کېدلو نه پس د طبیعت بدلیدل. کُول آوړېدل ، مچ تېرېدل ، زړهٔ چینچېدل.

**اَجب** :- (اَ + جَ + بْ) [ پ (وز + ب ، خ) ع : عجب ، ص ] عجیبه ، اجیبه ، حېرانوونکے ، اریانوونکے ، لکه : ''اجب انصاف دے''.

**اِجتماع** :- (اِجْ + ت + ما + ع) [ ع ، اس ، مؤ ، وا ] غُنډه ، جلسه ، گڼه ، یو ځاے کېدونه .

چې یو ځل سره ځوک بېل شي
بیـا پـه بخـت وي اجتـمـاع (خوشحال)

**ـــ کېدل** :- (اص) غُنډېدل ، یو ځاے کېدل ، جلسه کول ، گڼه جوړول ، یو ځاے جمع کېدل.

**اِجتناب** :- (اِجْ+ت+نا + بْ) [ ع،مذ،وا ] ډډه، پرهېز، ځان ساتل، بچ کېدل

ما رحمان چې سترگې روڼې په رحمان کړې
اوس محـال دے اجتنـاب زمـا د سـترگو (رحمان بابا)

**اِجتهاد** :- (اِجْ + ت + ها + د) (۱) کوښښ ، لټون ، سعي ، جهد (۲) د عالم دین په دیني مسئلو کښې رائې ، د وخت د صاحب حق په دیني مسئله کښې فېصله.

کـه دا نـور شـاعـران کاندي هغه نهٔ کا
رحمان کړے نوے نوے اجتهاد دے (رحمان بابا)

**ـــ کول** :- (اص) کوښښ کول ، لټون کول ، په څهٔ دیني مسئله کښې د قرآني تعلیماتو په رڼا کښې فېصله ورکول.

**اَجر** :- (اَ + جَ + رْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اجرونه ] ثواب ، بدل ، عوض ، د نېک کار بدل ، مزدوري.

**ـــ غوښتل** :- (اص) بدل غوښتل (ثواب غوښتل) عوض غوښتل ، د ښهٔ کار انعام غوښتل ، د کړي کار مزدوري غوښتل.

**ـــ موندل** :- (اص) ثواب موندل ، د نېک کار بدل ورکېدل ، مزدوري موندل ، اجر اخستل ، مزدوري تر لاسه کول ، د نېک کار بدل بیا موندل.

**ـــ ورکول** :- (اص) (۱) بدل ورکول ، د ښهٔ کار عوض ورکول ، مزدوري ورکول (۲) ثواب بخښل.

**اِجرا** :- (اِجْ + را) [ ع ، اس ، مؤ ، وا ] (۱) تعمیل ، نفاذ (۲) جاري کول ، کار شروع کول ، کار روانول.

**اُجرت** :- (اُجْ + رَتْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اُجرتونه یا اُجرتینه ] مُزد ، د کار عوض یا بدله ، مزدور. لکه : ''ماته خپل اُجرت راکړه''.

**اُجرتي** :- (اُجْ + رَ + تي) [ پ تر ، اس ص ، مذ ، مؤ ، وا ، ج: اُجرتیان یا اُجرتیون] په اُجرت کار کوونکے ، چریکار . مزدور

**ـــ قاتل** :- (اص) هغه سړے چې په پېسو مرگونه کوي.

محفل د ښکلیو خلقو ټول بزرگان شریفان
یـا متیـزک گڼکپان یـا اُجـرتي قـاتلان (غني)

**اَجَړ** :- (اَ + جَ + ړ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اَجړان ، (مؤ ، وا: اَجړه، ج : اجړې) ] د شادو (بیزو) گډوونکے ، هغه څوک چې د ښېښو نخرو دپاره ځان سره شادو گرځوي. گُونگر (گن) بیزوټارے.

**اَجړ** :- (اَ + جْ + ړ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : (مؤ ، وا : اجړه ، ج : اجړې) ] (۱) د گډو بزو رمه ، کنډک ، (غیله) (۲) گډبون ، گډبه ، بیزوگي ، (۳) په سوات، بنېر ، کوهستان ، دیر او باجوړ کښې د یو نسل نوم.

**اِجړا** :- (اِجْ + ړا) [ اف : پ (قاموس) اُر : هېجړا ، اس ، مذ ، وا ، ج : اجړاگان یا اجړاگون ] نر ښځ ، نامرد ، نو مرد ، ایجړا ، نر ښځے.

**اَجړي** :- (اَجْ + ړي) [ پ (ب ، خ + گن) اس ، مذ ، وا، ج: اجړیون ] گډبه ، هغه څوک چې رمه بیائي ، ځروي ، گډبون ، شپون.

**اَجړي سپے** :- (اَجْ + ړي + سْ + پَے) [ پ (سو) اس ، مذ ، وا، ج: اجړي سپي ] د سپو هغه نسل چې اجړئے ساتي،د کوچیانو سپے ، هغه سپے چې د اجړ ساتونکے وي.

**اَجز** :- (اَ+ جَ + ز یا اَ+ جَ + زْ یا او + جَ + زْ) [ پ ، ع : عاجز ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اجزان یا اجیزون ، (م ، وا : اجزه ، ج : اجزې) ] خوار ، غریب ، نادار، لاچاره ، بې وسه ، نیستمند ، خوار پړک.بې آزاره.

**اَجزي** :- (اَ + جَ + زي یا اَ + جْ + زي) [ پ ، اُر : عاجزي ، اس ، ص ، مؤ ، وا، ج : اجزی ] خواري ، غریبي ، بې وسي ، ناداري ، لاچاري.

**اُجغنه** :- (اُجْ + غُ + نَ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اُجغنې] اُژغنه ، د بزې وېښتهٔ ، وژغنه ، ژغوني .

**اَجغے** :- (اَ + جْ +غَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، ج: اجغي ] شیشکے ، گیشکے ، شژکائے ، شیشکے ، ششکے.

**اَجَل** :- (اَ + جَ + لْ) [ ع (روسي قاموس) مذ ، وا ] لغ : نېټه ، مقرر و خت ، مقرره، اص : مرگ ، قضا ، اَځَل ، اوزل ،

د اجل ساعت که هر څو گران یاد ېږي (خوشحال)

**ـــ اخستے** :- (اص) د مرگ په خولهٔ کښې ، مرگ ته نزدې ، هغه څوک چې ځان په خپله مرگ ته نزدې کوي ، اجل اغستے.

**اَجلاپ** :- (اَجْ + لا+ پ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا: اجلاپه)] پاک، صفا ، سترا ، هغه څوک چې پاک صاف او درست وي

**اَجلځے** :- (اَ + جَلْ + دْزَ + ئے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] بځکي ، بځي ، پستکي ، پوځکی ، غولگوري ، پسکه ، پسته.

**اِجمال** :- (اِجْ + ما+ل) [ ع ، ص ] لنډیزه ، خلاصه ، اختصار ، لنډوالے ، سرسري.

**اِجمالي** :- (اِجْ + ما + لي) [ اُر ، تر ، ص ] په لنډو سرسري ، لکه :'' اجمالي ایمان مې صحیح دے'' (اخون قاسم)

**اَجوَت** :- (اَجْ + وَ + تْ) [ اف ، پ (قاموس) ص ، مذ ، (مؤ ، وا: اجوته ، ج: اجوتې) ] جُخت،یو بل سره نزدې،پېوست،لکه: ''ښهٔ سره اجوت شول''.

**اجوت والے** :- (اَجوت +وا +لے) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] جُخت والے پېوست کېدل،یو ځاے کېدل،ډېر نزدې کېدل،یو بل سره نزدې کېدل.

**اَجوتول** :- (اَجْ + وَ + تَ + وُ + ل) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] جختول ، یو بل سره پېوست کول ، نزدې کول ، یو ځاے کول ، برابرول ، محکمول. ما : اُجوت کهٔ ، حا : اجوتوي ، ا: اجوت به کې ، امر: اجوت که.

**اَجوتونه** :- (اَجْ + وَ + تَ + وُ + نَ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] پېوست کونه یو ځاے کونه ، یو بل سره نزدې کونه ، برابرونه ، محکم کونه .

**اَجوتوونکے** :- (اَجْ + وَ + تَ + وُو + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) ، اس ، فاع

، مذ ، وا ، ج : اجوتوُونکي ] جختوُونکي ، يو ځاے کوونکے ، يو بل سره برابروُونکے ، محکم کوُونکے۔

**اَجوتېدل** :- ( اَجْ + وَ + تې + د + ل ) [ اف : پ ( قاموس ) مص ، لا ] جُختېدل پيوست کېدل،يوځاے کېدل ، برابرېدل ، ما: اجوت شۀ ، حا: اجوتېږي ا : اجوت به شي۔

**اَجنبي** :- ( اَجْ + نَ + بي ) [ ع ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اجنبيان ] مسافر ، نابلد ، د بل ځاے۔

**اَجنټ** :- ( اَ + جَنْ + ټْ ) [ پ ( روسي قاموس ) انګ : ايجنټ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اجنټان ، اجنټون ، ( مؤ ، وا: اجنټه ، ج : اجنټې ) ] نمائنده ، دلال ، مېنځه ګړے [مېنځ ګړے، دربم ګړے ] ۔

**اُجُوبه** :- ( اُ + جُو + بَ ) [پ، ع : عجوبه ، ص ] ( و ـــ اَجب )

**اُجه** :- ( اُ + جَ ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ، وا ، ج : اُجې ] جَوَزې ، ژورې، ژوري ، جوګه ، جورې۔

**اَجيبه** :- ( اَ + جي + بَ ) [ پ ، ع : عجب ، عجوبه ، ص ] ( و ـــ اَجب )

**اَجيټن** :- ( اَجي + ټَ + نْ ) [ پ ، انګ : اېډجوټنټ ، اس ، مذ ، وا ، ج: اجوټنان يا اَجيټنان ] يو فوځي افسر ، په پلټنه کښې دا افسر د سپاپانو د تربيت او ضابطه ذمه وار وي۔

**اَځل** :- ( اَ + دْزَ + لْ ) [ پ ( ب خ ) ، ع : اجل ، مذ ، وا ] ( و ـــ اجل )

**اَځي**:- ( اَ + دْزَ + ی ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ] د نرو لَښتو او څانګو نه جوړه شوې پنجره۔

**اُچ** :- ( اُ + چْ ) [ پ ، ص ] (۱) وُچ ، چې لُوند نۀ وي۔ بې نمه ، (۲) د دير په علاقه کښې يو کلے ، وُچ۔

**ـــ اړوکے** :- لغ : هغه اړوکے چې وُچ وي۔ خشک هړوکے ،اص : کمزورے ، مانده ، ډنګر ، ټپ ، نرے۔

که له دسته د هجران شوم اُچ اړوکے
لابـــه ښۀ شم د دلبر ګذار ته نخښنه (علي خان)

**ـــ اودس** :- (اص) وُچ اودس ، اودس چار اندام ، وړوکے اودس۔

**ـــ او لاؤندۀ** :- لغ : وُچ او تاند ، اص : (۱) ښۀ او بد ، ښک او بد ، (۲) ګناهګار او بې ګناه ، قصور وار او بې قصوره ،لکه:"اوچ او لاوندۀ سره مه سوځوه "

**ـــ ايستل** :- لُغ : داسې اوباسل چې لوند نۀ شي۔ اص : (۱) د نوکرۍ يا د ذمه وارۍ نه بالکل ايستل ، (۲) د څۀ جرم يا الزام نه بالکل خلاصول (۳) ښخې ايستل ، د برخې نه محرومول۔

**ـــ بيزن** :-(اص) وُچ غوندې،وُچ شانَ،نوجن، اُچ غړن ، زيم جن ، نمل۔

**ـــ په اُچه** :- ( اُچ + پَ + اُ + چَ ) اص : (۱) خامخا ، بغېر د څۀ خطا يا تور نه ، هېڅ بې هېڅۀ ، برناحقه ، لړ په ناحقه ، بې ښې بې بدې هسې ، ايسې ، ايسې بيسې ، اَسې (۲) بې ضرورته ، وچ په مچه

**ـــ په مچه** :- ( اُچْ + پَ + مَ + چَ ) [ پ ، اص ] ( و ـــ وچ په وچه )

**ـــ توپ** :-( اص ) (۱) وُچ والے ، وچ والے ، هغه حالت چې په کښې څۀ شے وُچ شي (۲) د ښځې يا ځناور چې بچے نۀ پېدا کېږي۔ (۳) د لنګې پې وچېدل۔

**ـــ تيلے** :-( اص ) (۱) وُچ تيلے ، ډکے ياخرټئے ، وُچ تيلے ، (۲) ډېر وُچ کمزورے ، مانده ، ډنګر ، نرے ، کيرے ، نرے پيرے۔

**ـــ ټوخے** :-(اص) وُچ او خشک ټوخے ، هغه ټوخے چې بلغم نۀ لري ، بې بلغمه ټوخے ، بې خراشکي ټوخے۔

**ـــ ټوک** :-(اص) د ډوډۍ وُچه ټکړه ، سپوره ټکړه ، وُچ کنډک (ګن)

**ـــ ډکے** :-(اص) (و ـــ اُچ تيلے)

سـره لنبـه د اور چې څۀکا پـه اُچ ډکي
مخ د يار په رحمان هسې چارې کاندي (رحمان بابا)

**ـــ راپاڅېدل** :-( اص ) نېغ راپاڅېدل ، د څۀ فېصلې نه بغېر راولاړېدل څۀ فېصله نۀ کول۔

**ـــ زور** :- لغ : وُچ طاقت ، وُچ قوت ، اص : ښخې زور ، صفا زور ، شين زور ،زياه کوښښ،لکه : "په وچ زور مې روپۍ ترې بوده کړه"

**ـــ سترګي** :- لغ : د وچو سترګو واله ، د وُچو سترګو خاوند ، اص : بې حيا ، بې شرم ، سپين سترګے ، بې لحاظ ، هغه څوک چې د مشر کشر لحاظ نۀ کوي۔ بې نمه سترګو واله۔

**ـــ سېلاب** :-(اص) هغه سېلاب چې هر طرف ته اوبۀ اوبۀ وي۔ زيات سېلاب۔ همه سېلاب (سو)

**ـــ غړن** :-(اص) (و ـــ اُچ ښړن)

**ـــ قبض** :- لُغ : وُچ قبض چې بهر ته سخت کښېني ، کلکه ناسته ، پيچش ، تاؤ۔ اص : د خېټې هغه درد چې ورکښې بيمار دم په دم د حاجت دپاره باهر ته ځي۔ خو څۀ ترې جوړېږي نه اودس ماتے ئې نۀ کېږي۔ اُچه کانګه ، نس خوږے۔

**ـــ کال** :-(اص) وُچ کال ، هغه کال چې باران په کښې نۀ وي۔ قحط سالي ، خشک کال ، سوکړه ، خشک سالي ، سره۔

**ـــ کړاس** :-(اص) ښخې وچ شوے ، وچ کړاس ، مانده ۔ ډنګر ، ټپ د بيمارۍ
له کبله اوچ شوے۔

**ـــ کړس** :-(اص) (و ـــ اوچ کسکر)

**ـــ کسکر** :-(اص) (۱) ښخې اوچ شوے ، سخت اوچ شوے ، وچ کړس وچ ککړ (۲) د رنځ د سببه ، تور وچ شوے۔

**ـــ کښکرے** :-(اص د ډوډۍ هغه ټکړه چې په تنور يا تبۍ پورې ونښلي ډېره سره شي او بيا ئې چې څوک خوري نو خراپا کوي۔ کرپندے ، کروپے۔ [کښکرے واحد + جمع کښکرې۔ ينه ، سرے ، پښتۍ ، وازده او د غوښې ټکړې چې په هانډۍ کښې وريتولے يا وريتۀ شوي وي]

**ـــ ککړ** :-(اص) (و ـــ وچ کسکر)

**ـــ کلک** :-(اص) (و ـــ وچ کسکر)

**ـــ کنډک** :-(اص) (و ـــ وچ ټوک)

**ـــ کوتک** :-لُغ : خشک لوړ ، اص : فضول ، بې فائدې ، بې مطلبه ، ښکار ، لونډ ، بې ښې توښې ، لکه : "فلانے وچ کوتک دے"

**ـــ کونے** :-(اس ، ص) مانده ، کمزورے ، ډنګر ، نرے ، ټپ۔

**ـــ لرګے** :- لُغ :خشک لرګے ، وچ ډانګ ، وچ کوتک ، اص: خاموشه پټه خولۀ، لَلْ

پـه تسبيح دې تانده ژبه اُچ لرګے شي
پـوچ ګوئي لره بلبل غوندې ګويان ئې (رحمان بابا)

**ـــ لينګے** :-(اص) (۱) وچ نرے لينګے (۲) هغه څوک چې لينګي ئې وچ نرې وي۔

**ـــ مټ** :-(اص) خالص زور ، زيات زور ، تش زور۔

**ـــ مخے** :-(اص) سپېرۀ مخے ، هغه څوک چې په مخ کښې ئې نور نۀ وي۔ بې نُوره ، بې مالګې ، سپور مخے ، نرے مخے ، چُوسه۔

**ـــ مورئے** :-(اص) په پيو شوے بچے ،هغه بچے چې د مور پۍ ئې وچ شوي وي

**ـــ مېړن** :-(اص) اوچ غوندي ، وچ شان ، نیم اوچ ، نوجن ، وچ بېزن وچ غړن

**ـــ وزرے** :- (ـــ وَ+ زْ + رَے ) [ پ ، اس ص ، وا ، ج : وچ وزري ] د غټو جوارو وږي چې په پخېدو راشي۔

**اَچار** :- ( اَ + چا + ر ) [ ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : اچارونه ] مېوه یا څۀ سبزي ترکاري چې په سرکه ، تېلو او مالګه کښې واچولے شي ، ورسره مصالحې هم ګډې کړے شي۔ نو څو ورځې پس خوړین او وراسته شي خوند ئې تريو شي۔هغې ته اچار وائي۔

تل ثرید خوره د ښو پسونو

ورســره څـــۀ خـــو اچار (خوشحال)

**ـــ اچول** :-(اص) (۱) په څۀ لوښي کښې اچار جوړول ، (۲) اچار جوړول ، اچار تیارول (۳) د څۀ څیزپه یو ځائے جمع کول ، یو څیز د ځائې نه نۀ خوځول (۴) خبره اوږدول ، بې ضرورته څۀ کار کښې اټالتیا راوستل۔

**ـــ ایستل** :-(اص) (۱) څۀ لوښي کښې اچار اچول (۲) د څۀ څیز حد ته رسول ، ښۀ څېړنه کول (۳) څۀ څیز بربادول ، (۴) د څۀ څیز نه عرق یا سَت ویستل (۵) ډېر سخت وهل۔

**ـــ جوړول** :-لُغ : اچار تیارول ، اص : (۱) ډېر مېښل ، یو څیز ذرې ذرې کول (۲) څۀ خبره ورانول۔

**د مچانو ـــ** :- (اص) ګنده کار ، سخا څیز۔

**اَچار خانه** :- ( اَچار + خا + نَ ) [ پ (خل) فا : چارخانه ، اس ، مؤ ، وا ، ج: اچارخانې ] هغه کپړه رخت یا ټوکے چې اوږدۀ په سورۀ کرښې په کښې جوړې وي۔او څلور ګوټه خانې ترې سازې شوې وي۔ یو قسم ته ډوریا ۔

**اُچت** :- ( اُ + چَ + تْ ) [ پ (راورټي) ص ] دنګ ، لوړ ، چګ ، جګ ، لک ، لکه : '' ډېر اوچت غر دے۔

**اُچتوالے** :- ( اُ + چَتْ + وا + لَے ) [ پ (روسي قاموس) ص ] (۱) قد ، لوړتیا دنګ والے ، جګ والي ، چګ والے ، چګ وولئے (۲) د مرتبې ، منصب یا عهدې زیاتوالے (۳) لک والے۔

**اُچتول** :- (اُ+ چَ+ تَ + وُ + لْ ) [ پ (روسي قاموس) مص مت ] (۱) پورته کول ، اوچتول ، پاس خېژول ، (۲) د چا د یو ځائے نه پاځول (۳) د څۀ مقابلې دپاره د چا پاځول یا اودرول۔(۴) منصب زیاتول (۵) لکول ما : اوچت کۀ ، حا : اوچتوي ، ا : اوچت بـه کي ، امر : اوچت که۔

**اُچتونه** :- (اُ+ چَ + تَ + وُ + نَ) [ پ (ب ، خ ، حمص ] (۱) پاس خېژونه ، لوړونه ، پورته کونه (۲) د یو ځائے نه پاڅونه (۳) د څۀ مقابلې دپاره پاڅونه یا د سرو را اوچتونه (۴) منصب زیاتونه (۵) لکونه۔

**اُچتېدل** :- (اُ + چَ + تې + د + لْ ) [ پ (روسي قاموس) مص لا ] (۱) پورته کېدل ، اوچتېدل ، پاس ختل ، (۲) د چا د یو ځائے نه پاڅېدل (۳) د څۀ مقابلې دپاره دچا پاڅېدل یا اودرېدل (۴) منصب زیاتېدل (۵) لکېدل ما : اوچت شۀ ، حا : اوچتېږي ، ا : اوچت به شي

**اَچر** :- (اَ+ چَ + رْ ) [ پ (سو) اس ، مذ ، وا ] (۱) ارچه ، د يوې ونې نوم۔ددې ونې لرګے د نښتر نه غوره او د دیار نه لاندې وي ۔ اکثر ترې د کوټو تیرونه جوړولې شي۔(۲) خل : د پېښور نه قبلې اړخ ته یو کلے۔

**اَچرنګه** :- ( اَچْ + رَنْ + ګَ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: اچرنګې ] ګوګوشتو ، بابغه ، ببوغه ، بابغیې ، بغدادي کوتره ورته هم وائي ۔

**اِچغنه** :-(اِ+ چ + غ + نَ ) [ پ (وز) اس ، مذ ، وا ] د ګوړې یا ګړې ګانې چغنه۔ لکه : '' اچغنې وربزې دي '' یعنې د ګانو ورځې دي۔

**اَچکزی** :- (اَ+ چَکْ + ز+ ی) [ پ ، اس ، مذ ] د پښتنو یوه قبیله ، اڅکزي

**اَچکزے** :- ( اَ + چَکْ + زَے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اچکزي ( مؤ ، وا: اچکزئے ] اڅکزے ، د اچکزي قبیلې سړے۔

**اُچکل**:- ( اُچْ + کَ + ل ) [ پ ( روسي قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج : اُچلان یا اُچکلي ،(مؤ،وا : اُچکله،ج : اُچکلې ) ] ورکوټے ګډ ، ګډورے ، وُرے

**اُچکے** :- ( اُچْ + کَے ) [ پ (روسي قاموس ) اس ، ص ] اوچکے ، کمزورے ، مانده ، ټپ ، ټیپ ، اوچ کلک ،نرے پرے ، اوچ کړس ، نرے کرے نرے نروچکے۔

**اَچ مُوچ** :- ( اَچْ + مُو + چْ ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا] البس یا الپس ډنډې ، ګُلې ډنډه ، اوے جاوے۔

**اَچُو** :- ( اَ + چُو ) [ اف: پ (قاموس) اس ،مذ ، وا ] د الوچې په شان یوه مېوه

**اُچوالے** :- ( اُچْ + وا + لَے ) [ پ ،ص ،مذ ] (۱) اوچوالے ، خشکي (۲) اوچ کلکوالے ، نرے والے ، ډنګر توب ، ټپ والے۔

**اُچوبه** :- ( اُ + چو + بَ ) [ پ ، اس ص ، مؤ ، وا ، ج : اُچوبې ] اوچوبه ، للمه باراني زمکه ، هغه زمکه چې د خړوبولو او پنه کولو څۀ بندوبست ئې نۀ وي۔باران ته ئې کاتۀ وي۔هغه زمکه چې اسمان تۀ ئې کاتۀ وي۔

**اُچوبي** :- ( اُ + چو + بي ) [ پ (اف) ، اس ، صد ] سوکړه ، اوچوبه ، قحط سالي ، سره

**اُچوبے** :- ( اُ + چو + بَے ) [ پ (خل) اس ص ، مذ ، وا ] کله چې د پټي نه اوبۀ واړولے شي۔خو لالړې لړې اوبۀ پټي ته راځي۔ورته اُچوبے وائي۔

**اَچول** :- ( اَ + چَ + و + ل ) [ پ ، مص مت ] (۱) غورځول ، غوزارول ، ګُذارول ترئیل ، اچون ، (۲) په کټ بستره غوړول (۳) کالي یا جامې لتې اغوستل (۴) دوه کسه سره جنګول یا نښلول (۵) پرېښول (۲) بندول تړل ،(بند کول) ما : واچاوۀ ، حا : اَچوي ، ا : وابه چوي ، امر : واچونه

**اګي ـــ** :- لغ : د چرګې یا د بلې مرغۍ ها یا وویه کول ،اص : کار کښې ډیل کول۔په څۀ کار بې ضرورته زیات وخت تېرول۔په څۀ کاغذ غلې کېدل۔

**انګته ـــ** :- (اص) (۱) لاس اچول ، اخته کېدل (۲) څوک خامخا د جګړې دپاره راپارول ، جنګ ته مجبوره کول ، مجبورول ، د چا جنګ ته اودرول۔

**اوبۀ ـــ** :- (اص) (۱) څۀ لوښي ته اوبۀ وراچول یا اچون یا د هغۀ نه اوبۀ تویول (۲) د لاس وینځلو دپاره اوبۀ اچول (۳) د بدن یا د څۀ بل څیز د وینځلو دپاره ورباندې اوبۀ تویول۔

**باد ـــ** :- (اص) (۱) باد پرېښول (۲) پهې د باد نه ډکول ، د باد په وجه څۀ څیز پرسول ، باد ورپوکل ، څۀ څیز د باد نه ډکول ، څۀ څیز په باد پړسول

**بار ـــ** :- (اص) (۱) په څاروي باندې بار لېږدول (۲) په چا د یو کار ذمه واري اچول ، درنه ذمه واري ، بېګا ر ، چاته سپارل۔

**بټ ـــ** :- (اص) د دانو ، نينو کولو دپاره بټ تودول ، بټ باندې کول بټ ګرمول

**بچے ـــ** :- (اص) (۱) بچے پیدا کول ، بچے کېدل ، (۲) د میعاد نه وړاندې د بچي پیدا کېدل (۳) بیاستې ته بچے اچول۔

**بډه یا بډي ـــ** :-(اص) د پرتوګ پاسنی حصه یا جوړول ګنډه اچول (ګن)

**برید ـــ** :- (اص) پُوله جوړول ، حدبندي کول۔

**بند ـــ** :- (اص) (۱) بند تړل ، پوله تړل ، د اوبو د ایسارولو دپاره برید یا بوړې اَچول یا تړل (۲) د څۀ خبرې تابیا کول۔

**بګه ـــ** :- (اص) پرتوغاښ اچول ، په پرتوګ کښې لال اچول ، پرتوګ ته

پرتوغاښ اچول. پرتوګ کښې پرتوغاښ اچول.

**بندونه** :- (اص) د بیمار غاړې ته تعویذونه وراچول ، د معصوم غاړې ته بندونه یا ساختونه اچول.

**بندۍ** :- (اص) (۱) د ارټ بیاسته چې د اوبو د ژوروالي په وجه کمه شي نو هغې ته ټکړه واچولے شي . ورته بند یا بندۍ اچول وئیلې کېږي . د ارټ لنډې شوې بیاستې ته بچے یا پړوکې اچول . (۲) ځناورو ته د ښائست ، ډول یا قابو ساتلو دپاره غاړې ته ښکلې غاړګې اچول.

**بېړۍ** :- (اص) (۱) پښو ته زولنې اچول ، (۲) په څۀ کار کښې ګېرول ، ذمه واري سپارل (۳) ځوان ته وادۀ کول (۴) په سیند کښې کشتۍ ګډول یا لاهو کول . (۵) نوې جوړه شوې کشتۍ په سیند کښې پرېښول.

**بیه** :- (اص) (۱) د څۀ ځیز قیمت ټاکل ، بیه کول (۲) د څۀ ځیز بیه کمول ، نرخ پرېوتل

**پچه** :- (اص) (۱) د ګډو بزو پچې کول (۲) اوچه لونده کول ، هسک اچول ، شېرخط کول ، خسنه اچول.

**پړ** :- (اص) جواري کول ، د جوارۍ مېدان ګرمول ،

**پرده** :- لُغ : پرده راکوزول ، اص (۱) د چا راز پټ ساتل ، (۲) راضي نامه کول

**پړے** :- لُغ : بیاسته اچول ، څۀ ځیز په رسۍ یا بیاسته تړل . اص : (۱) بندول ، د څۀ کار نه ایسارول یا منع کول (۲) وادۀ کول

**په ډډه** :- (اص) (۱) یو خوا ته کول ، څۀ ځیز یو خوا ته کښېښول (۲) په یو اړخ کښېښول ، په څنګ کول ، یو طرف ته کول.

**په سر** :- (اص) (۱) څادر یا پړونے یا لوپټه په سر کول یا د سر دپاسه اچول ، (۲) چاته کار سپارل ، څۀ کار د چا په ذمه کول . (۳) شوک د څۀ خبرې دپاره ذمه وار ګرځول ، په بل باندې غوره اچول

**په سر خاورې** :- (اص) (۱) خوارې مزدورې کول ، در غریبي کول، (۲) د کونډې ښځې دوېم ځل نکاح کول.

**پښه په پښه** :- (اص) (۱) یوه پښه په بلې اړول (۲) بې کاره کښېناستل ، بې
غمه وخت تېرول ، کار نۀ کول.

**پنجه** :- (پَنْ + جَ + اَچول) [پ اص ] (۱) جوړ تازه کول ، سترې مشې دپاره لاس ورکول (۲) اقرار کول،لوظ کول ، قول کول (۳) جنګ کول . لاس اچول، ننبلېدل ، لاس لګول ، نُوکارې کول خاپړې لګول.

**په لمن کښې** :- (اص) (۱) په ځولۍ یا جولۍ کښې ګذارول ، (۲) په امان کښې ورکول ، چاته سپارل . لکه : '' پام کوه ، ګوره ستا په لمن کښې مې اچولے دے . خیال ئې ساته ''.

**پېسې** :- (اص) (۱) چنده ورکول ، د ګډون یا شراکت دپاره پېسې راټولول .

**تار** :- (اص) (۱) په ستن کښې تار اچول یا پېیل (۲) تار استول یا لېږل (۳) چا پورې ځان انښلول . لکه د ماشوم مور پورې ځان انښلول.

**تخت** :- (اص) تخت غوړول ، د ناستې دپاره د لرګي لویه چوکۍ یا تخته پوش کښېښول.

**تخم** :- (اص) تخم کرل ، په زمکه کښې تخم ګذارول ، کرونده کول کر کول.

**تلۍ** :- (اص) د ګوډ نه پس بوټو ته ګېر چاپېر خاوره اچول.

**تلے** :- (اص) (۱) څۀ ځیز د ورغوي یا د تلي نه خولې ته کول ، لکه: '' یو تلے سپېغول واچول '' (۲) پېزار ته لاندې نه تلے لګول ، (۳) د کوټې چت یا لاندې تلے لیوۀ ل (۴) د زوړ لوښي بېخ ته ټکړه لګول یا خېژول.

**تنور** :- (اص) (۱) نوے تنور جوړول یا سازول (۲) د ډوډۍ پخولو دپاره په تنور کښې خشاک اچول ، تنور ګرځول ، تنور تودول ، تنور سُور کول.

**توره** :- (اص) (۱) توره تر څنګه کول ، توره تر ملا تړل ، (۲) تُوره تیکې ته کول (۳) تُوره ډال غورځول ، د مقابلې نه لاس اخستل ، د مېدانه تښتېدل، مېدان پرېښودل ، پړه منل ، وسله اچول ، وسله غورځول ، وسله کښېښودل ، ماتې منل.

**تي ته** :- (اص) ماشوم ته پۍ ورکول ، د مور ماشوم غېږې ته کول ماشوم سینې ته اچول.

**تېزندۍ** :- (اص) د مرګ دپاره چاته په غاړه کښې پړے یا رسۍ اچول.

**ټکړه** :- (اص) (۱) سپي یا پېشو ته ډوډۍ نوړۍ غورځول ، ګپه غورځول ، اړتاوول یا تریل. (۲) جامو لتو زړوکي ته د مرمت دپاره یوه ټکړه لګول ، پیوند لګول ، ټاکۍ لګول.

**ټکه** :- (اص) ټکه خوړل ، زړۀ ته خبره اچول ، شکمن کېدل ، خیال ته راتلل ، فکر ته راتلل.

**ټیز** :- لغ : باد پرېښول ، اص : (۱) شکست منل ، پړ کېدل ، ماتې منل (۲) د خبرې یا لوظ نه اوړېدل ، خپله کړې خبره پرېښول. (۳) خپل ضد پرېښول.

**جال** :- (اص) (۱) د کبانو یا مرغانو د نیولو دپاره جال غوړول ، غورځول یا لګول (۲) د جولاګي ( غنې ) جاله جوړول (۳) د ټګلو دپاره خوږې خوږې خبرې کول یا جوړول ، فرېب جوړول.

**جاله** :- (اص) (۱ جاله جوړول ، ځاله تیارول (۲) مېشتۀ کېدل ، د استوګنې دپاره ځاے جوړول.

**جالي** :- (اص) په ډوډۍ یا د خوراک په بل ځیز د جالې یا پشم جوړېدل ، د ډوډۍ پشمن کېدل.

**خنډ یا خړنګ** :- (اص) خړنګه اچول ، په څۀ خبره یا معامله کښې وراننے پیدا کول ، خر ګوډول.

**خوا ته** :- (اص) (و ــــ تي ته اچول)

**خولۀ** :- (اص) (۱) خولۀ لګول (۲) چیچل ، مامه شمبره در ګډ یم، بابت خاه مخواه (۳) په څۀ خبره کښې خامخا ځان ګډول ، په زور خولۀ ګډول (۴) دعوٰی کول (۵) د بې شرمۍ غوښتنه (۲) مخې ته راتلل (۷) غاښونه لګول یا کښېښول.

**خولې ته** :- (اص) (۱) د څۀ ځیز خوړل یا تش خولې ته اچول. (۲) د چا په حقله د خلقو ګنګوسې کول ، د شرعې ورمخه کول.

**خېټه** :- (اص) (۱) قبضه کول، څۀ ځیز د خېټې لاندې کول . (۲) زور ګیر کېدل . زیاتې خور کېدل ، په څۀ ځیز په زور پښې راچاپېره کول (۳) په شناز په سیند پورې کېدل.

**دانې** :- (اص) (۱) مارغانوته دانې ورکول (۲) ژرندې،مېچنې یا مشین ته د اوړولو دپاره دانې اچول ، غاړه اچول ، مېچنې یا ژرندې ته غاړه وراچول (۳) مرۍ یا دانې په مزي کښې پېړل یا پېیل.

**د باز** :- (اص) باز په مرغو ورپرېښول ، د ښکار دپاره چې کوم باز ساتلے شوے وي . هغه په مرغو پسې ورخوشے کول.

اوس چې باز واچوم غوټه ئې نۀ وینم

آه! د پیــرۍ دې ، دا اشــارونــــه (خوشحال)

**دم ـــ** :- (اص) (۱) په چا کلام چُف کول (۲) دهوکه ټګي یا فریب کول (۳) د چا څۀ کار دپاره په خوږو خوږو خبرو ځان ته را اړول (۴) په هوده کول یا د هودې د لاندې راوستل۔تابع کول ، په مار لړم دم اچول۔

**دُومه ـــ** :- (اص) (۱) وریږي وریتولو دپاره اور بلول ، د وږو دپاره بټۍ اچول ، تراړه کول ، تراړه اچول ، (۲) د ماشو نه د بچ کېدو دپاره لوګے کول (۳) د چرسیانو او ملنګانو د چرس څکولو تکیه کنبې اور ته کنښناستل۔

**ډول ـــ** :- (اص) (۱) ډول غاړې ته اچول ، ډول غاړې ته کول ، د ژغولو دپاره د ډمانو ډولونه اخستل (۲) د کوهي نه د اوبو راویستلو دپاره بوقه وراچول

**را ـــ** :- (اص) (۱) څوک خپل خوا ته راغورځول ، څۀ ځیز خپل لور ته راګذارول (۲) څوک راپرزول ، زمکې ته راګذارول۔په ډاګه ویشتل (۳) د یو لوښي نه بل ته څۀ ځیز تویول یا اچول۔

**رانجۀ ـــ** :- (اص) سترګې تورول ، سترګو کښې رانجۀ اچول ، رانجۀ په سترګو پورې کول۔

**روئي ـــ** :- (اص) چا ته د چا د سر قسم ورکول ، د چا واسطه ورکول د خدا ے تعالیٰ رسول ص واسطه ورکول ، د چا لوے او پاک ذات په نوم منت کول۔

**زړۀ ـــ** :- (اص) (۱) ویرېدل ، په زړۀ کښې ویره راتلل (۲) مایوسه کېدل ، نامېده کېدل ، زړۀ بائیلل (۳) په مسافرۍ کښې کور کلے رایادېدل۔

**زړۀ ته ـــ** :- (اص) (۱) په څۀ خبره خفګان کول ،زړۀ خفه کول ، (۲) د چا دپاره په زړۀ کښې بغض کینه لرل۔زړۀ ته غوټه اچول۔

**زړۀ کښې ـــ** :- (اص) (۱) څۀ خبره یاد ساتل ، یوه خبره باندې یقین ساتل (۲) د حد نه زیاته مینه لرل ، یادونه زړۀ کښې ساتل (۳) زړۀ کښې پټول ، زړۀ کښې ځایول ، زړۀ کښې ګرځول۔

**ژغ ته ـــ** :- (اص) (۱) غوئې جغ ته اچول ، غوئې په جغ کول ، غوئې جوتې کول۔(۲) یو کس څۀ کار ته تیارول ، څوک د څۀ کار دپاره مجبورول۔

**ساه ـــ** :- (اص) (۱) ژوندي کول (۲) ساه اخستل (۳) سرخښې برابرول ، بنائسته کول (۴) د چا په راتلو زړۀ غټېدل ۔

**سر ـــ**:- (اص) (۱) خوښول ، د خوښې ښکاره کول ، په ډول سر خوځول (۲) په ګډا کښې سر یو خوا بل خوا اړول را اړول (۳) د چاربیتې یا سندرې اولنۍ مصرعه اړول۔

**شاته ـــ** :- لُغ : څۀ ځیز شاته یا روستو غورځول ، اص : په څۀ خبره پروا نۀ کول ، په څۀ ځیز غرض نۀ ساتل ، په څۀ وینا عمل نۀ کول ، څۀ بدې دښمنۍ هېرول۔

**شر ـــ** :- (اص) فساد جوړول ، جګړه جوړول ، خبره ورانول ، د ورانۍ دپاره خبره کول ، خبره ورانۍ ته نیول یا اړول ،شیطانۍ کول

**غاړه ـــ** :- (اص) (۱) مېچنې ته یو جُونګ دانې د وړولو دپاره وراچول (۲) په ژرندې لړې شان دانې د ضرورت دپاره اوړۀ کول۔

**غوبل ـــ** :- (اص) درمن اچول ، په درمن باندې غنم ، چنې یا وریژې خورول او بیا پرې غویان یا خرۀ ګرځول چې دانې ترې نۀ راؤځي۔

**غوټه ـــ** :- لُغ : ګنډه یا غوټه ورکول۔اص : (۱) بخیلي او شومتیا کول ، مال جمع کول ، پېسو ته غوټه اچول (۲) د سپي او سپۍ خپلو کښې ننښتل ، د سپۍ او سپي تار ترکۍ اچول ، د سپي سپۍ ته غوټه اچول ، د سپي سپۍ غوټه کېدل۔

**غوړ ته ـــ** :-(اص) (۱) څۀ کالے غوړونو ته د ښائست او ډول دپاره اچول (۲) غوړو ته دوائي ورځول ، غوړ کښې دارو اچول (۳) یوه خبره چاته اورول (۴) د چا څۀ خبره په غور سره اورېدل (۵) په غوړ وهل۔

**قیصې ـــ** :- (اص) قیصې وئیل ،قیصې بیانول ،قیصې مسئلې کول

**کنډه ـــ** :- (اص) ژوبې اوچتول ، ژبې اوچتول ، د ماشوم چې ژبې شي نو د یوې نرۍ لښتې نه مالوچ تاؤ کړي۔سندور ، ویلنے یا ایره پرې اودروي او د هغه ماشوم حلق ته ئې ورښکته کړي۔او ژبې ئې پورته کړي۔

**ګګ ـــ** :- (اص) ګبین اچول ، د مچو د شاتو کور جوړول ، ډومبکے جوړول ، د سرو مچو ډمبکے سازول۔

**اُچول** :- (اُ + چَ + وُ + ل) [ پ ، مص مت ] (۱) وچول ، خُشکول ، څۀ ځیز نمر ته د وچولو دپاره کښېول۔(۲) په ډېر انتظار ستړے کول۔ ما : اُچ کۀ ، حا : اُچوي ، ا : اُچ به کې ، امر : اُچ که۔

**اَچولے** :- (اَ + چَ + وَلے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: اچولي] اچولے شوے ، غورځولے کښېښودلے ، کښېښولے ، ترئیلے۔

**اُچ ولے** :- (اُچ+وَ+لے) [ پ، اس ، مذ ، وا ، ج : اُچ ولي ] تندے ، تنده۔

چې ئې لیک د بخت په اُچ ولي کښې نۀ وي

نـۀ سـود بړي هوښیاران په هوښیارۍ کښې (حافظ الپوري)

**اُچولے تړینګلے** :- (اص) تریو تندے ، بوټ تندے ، غوټه تندے ۔ګُنجې تنډه ، منډلے درینګلے۔

**اَچونک** :- (اَچْ + ون + ګ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] اچونه ، د اچولو عمل

**اَچونه** :- (اَ + چَ + ؤ + نَ) [ اف : پ (قاموس) حمص] (و ـــ اچونک)

**اَچوونکے** :- (اَ + چَ + وُو + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اچوُونکي ] غورځوونکے ، کښېښونکے ، ګذاروونکے ، هغه څوک چې څۀ ځیز اچوي ، غزاروونکے۔

**اَچووُنے** :- (اَ + چَ + ووُ + نَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اچووني ] بې مودې یا د وخت نه وړاندې پیدا شوے بچے ، غورځېدلے حمل ، زیان شوے بچے۔

**اَچه** :- (ا+ چَ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] د بزې یا وزې د شړلو یا را اړولو اواز ، کچې ، کُرو ، کرې۔

**اَچه** :- (اَ + چَ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اچې ] ډېګور ، برانګې ، دوه شاخه لرګے ، دو ګور ، دوه غانبۍ ، دوه غانبے ، دوه شاخے ، ډوهانګې۔

**اَچه کول** :- (اَچه + کَ + ؤ + لْ) [ پ (ب ، خ ، صوابي) ف مت ] صفا کول ، پاکول ، د څۀ غلې نه خچن والے کانبې ، لوټې ببلول ، یعني کوت کانبې لوټې ترې لرې کول۔

**اُچه** :- (اُ + چه) [ پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : اُچې ] (۱) اوچه ، خشکه ،چې لوندوالے نۀ لري۔(۲) پاکه ، صفا ، یوه ، لکه : ''اُچه خبره''۔

**ـــ لُونده** :- (اص) (۱) د کوټې په چت باندې چې لونده او بیا اُچه خاؤره اچولے شي۔ ګوراګل ، غوارګل ، چیکړې۔(۲) د شبرخط دپاره چې هسک ، پچه یا خسنے اچولے شي۔نو د سکې یا کانبې یو اړخ لوند کړے شي۔ (۳) (ب ، خ) د روغې جوړې په لړ کښې چې کومه ډوډۍ ورکولې شي۔ په هغې کښې وَرو ته اُچه او غوړو یا لمده بل یا اینګولې ته لونده وئیلے شي۔

**په ـــ پاتې کېدل** :- (اص) (۱) بې برخې پاتې کېدل (۲) باران نۀ کېدل سوکړه ، سوکالې

**په ـــ ډاګه** :- لُغ : په اُچ مېدان۔اص : بې اسرې، بې کومکه ، بې مدته۔

**په ـــ شرمندګی** :- (ص) ډېر په زور ، ښېخي په شرمولو ، لکه :" په اُچه شرمندګی مې ترې څۀ حصه واخسته ،،.

**اَچي** :- (اَ + چي) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ] د ورکوټي ذات غوا ، لنډۍ غوا ، د غرۀ د اصيل ذات غوا ، لاچی غوا.

**اَچے** :- (اَ + چے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اچي) د ورکوټي ذات غوايئے

**اُچي اودرول** :- (اُچي + او + د + رَ + ؤ + ل) [پ (سو) اص] بې فائدې کار کول، عبث کار کول ، نۀ کېدونکے کار کول.

**اُچېدل** :- (اُ + چي + دَ + ل) [پ ، مص لا] (۱) وچېدل ، د يو څيز نه لوندوالے تلل (۲) د بنيادم يا څاروي وچ کږس کېدل ، نرے ، مانده يا ډنګر کېدل .(۳) د لنګ څيز پئی وچېدل ، پئی نۀ کول (۴) د انتظار په وجه سترې کېدل ما :اُچ شو ، حا : اوچېږي ، ا : اُچ به شي.

**اُچي شونډې** :- (اُ + چي + شُو + ن + ډې) [پ ، اص] لغ : هغه شونډې چې اوچې شوې وي. اص : (۱) تږے ، د تندې حالت يا حال (۲) د خفګان مصيبت يا غم حالت.

هېڅوک دې په خوئې د عاشقی لاهې نۀ کا
کلـه هـم پتېږي اُچې شونـډې ګورنه زرده (رحمان بابا)

**اُچي کلکي** :- (اُچي + ک + لَ + کي) [پ ، اص] لُغ : اوچ او سخت اص: وره ، بغېر د څۀ کمې زياتي نه ، خالص، سپورې ستغې لکه : "اوچي کلکي خبرې"

**اُچي وريځې** :- (اُچي + و + رَ + ي + دزې) [پ ، اص] هغه وريځ چې باران په کښې نۀ وي.بې بارانه وريځې ، بادي وريځې.

**اَچي کول** :- (اَچي + کَ + ؤ + ل) [پ (سو) اص] سپے په چا پسې کول سپے توکول ، اچيش کول ، کشکالول.

**اَچي کول** :- (اَ + چي + کَ + ؤ + ل) [پ (ګن) ف مت] بزه ، زبه ، اوزه يا بيزه شړل ، لکه : " اچې سه "يعني اچې شه ، کچې کول.

**اَچيش** :- (اَ + چي + ش) [اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مذ ] غواؤ او غوايانو ته د اوبو ورکولو په وخت دا اواز اوباسي.لکه :" اچيش اچيش.

**اَچيېل** :- (اَ + چي + يَ + لْ) [پ (مل) مص لا] (و ـــ اچول)

**اَڅک** :- (اَ + څسَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ] د پښتنو د اڅکزي قبيلې د نيکۀ نوم . اَڅک نيکۀ.

**اَڅکزے** :- (اَ + څسَ + ک + زے) [پ ، اس ،مذ ،وا ، ج: اڅکزي] (و ـــ اچکزے)

**اُڅکېزه** :- (اُڅس + کي + زَ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: اُڅکېزے] تمبُو ،خېمه، کېږدۍ ، د کوچيانو او نورو کډوالانو تمبو

**اَڅنل** :- (ا + څسَ+نْ +ړ+ل) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] (۱) اوارول ، برابرول، سمول ، دربشي کول ، استري کول (۲) په اوږدو ټکونو ګنډل ، نواړي کول، کچه ټکونه ورکول ، ګينډه کول ، په کچه کول.(۳) وزن يا سُر برابرول ، اواز سره اواز يو کول.

**اَڅنيلے** :- (اَ + څسَ + نْ + ړَ + لَے) [اف : پ (قاموس) حمص ، مذ ، وا ، ج : اڅنلي ] (۱) اوار کړے شوے.برابر کړے شوے. (۲) په غټو ګيندو نواړي شوے يا ګنډل شوے.(۳) سُر سره وسُر يو کړے شوے. سُر برابر کړے شوے.

v 8 0 Td1.( 0[ 0[ 0[ v)26.6157( )26.0539( )27.1314(!)27.1314(,)2( )-75.9735( g)13.0389( )

**اَڅنه** :- (اَ+ څسَ + ړ ، نَ) [اف : پ (قاموس) حمص ] (۱) برابرونه ، اوارونه (۲) په غټو ګيندو ګنډنه (۳) سُر يااهنګ برابرونه يا يو کونه.

**اُڅوونکے** :- (اَ+ څسَ + ړُو + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : اڅوونکي ] (۱) برابروونکے ، اواروونکے (۲) په غټو ګيندو ګنډونکے (۳) آهنګ او سر يو کوونکے.

**اَڅه** :- (اَ + څسَ) [اف : پ ، (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اڅې] د ورون اړوکے ، د پتون اړ ، د ورانۀ اړوکے ،

**اَڅه** :- (ا + څسَ) [اف: پ (قاموس) اس،مؤ،وا، ج : اڅې] (۱) لټون ، تلاش (۲) اسره

**ـــ کول** :- (مص لا) تلاش او لټون کول ، ځا ن يو ځاے ته رسول. د ارمان پوره کولو کوښښ.

**احاطه** :- (ا + حا + طَ) [ع ، اس ، مؤ ، وا،ج : احاطې] احاته ، غولے انګڼ ، په څلورو دېوالونو کښې راګېر ځاے.

**اَحباب** :- (اَ + حْ + با + بْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا: حبيب] ملګري ، دوستان ، عزيزان، اشنايان ، خواږۀ ياران ، زړۀ ته نزدې دوستان

**احتجاج** :- (اِ ح + ت + جا + ج) [ع ، اس ، مذ ، وا ،ج : احتجاجونه] په سختئ سره د څۀ کار يا خبرې نۀ منيل يا ورنه انکار کول او د هغې خلاف اواز پورته کول ، په څۀ خبره خفګا ن ښکاره کول ، په څۀ خبره ناراضګي يا زړۀ بداوے.لکه : "ما ډېر احتجاج وکړو ، ولې هغوي څۀ پام ونکړو ".

**ـــ کول** :- ( مص تر ) اعتراض کول ، د خپلې ناراضګئ يا زړۀ بداوي ظاهرول، آواز پورته کول.

**احتراز** :- (اِحْ + تِ + را + ز) [ع ، (روسي قاموس) اس ، مذ ، وا] څنګ کول،ځان ساتنه،ډډه کول،ځان ساتل،پرهېز کول،ځان ژغورل.

له زلفينو به دې چرې لاس وکاږم
پـــارو نــۀ کا لــه مـارانو احتراز (مصري)

**احترام** :- (اِحْ + تِ + را + م) [ع ، اس ، مذ ، وا ] قدر ، عزت ، تعظيم ، درناوے.دارمدار ، ادب.

**ـــ کول** :- مص تر ، قدر کول ،عزت کول ، دارمدار کول ، ادب کول چاته په درنه سترګه کتل.

**احتلام** :- (ا + حْ + ت+لا + مْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ] په خوب کښې په سرې اودس اوړېدل ، اوبۀ فرض کېدل ، لامبل فرض کېدل ، په خوب کښې د شېطان ليدل.

**احتمال** :- (اِحْ+تَ+ما +ل) [ع ، اس ، مذ ، وا] ګُمان ، شک شُبه اُمېد ، امکان

**احتياج** :- (اِحْ + تَ + يا + ج) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : احتياجونه] حاجت ، ضرورت ، غرض ، اړه ، اړتيا ، اتاله ، موتازي.

مجنون هسې رنګ مئين په ليلیٰ نۀ وۀ
چې پـــه نـور چـا ئې موقـوف وۀ احـتـياج (رحمان)

**ـــ لرل** :- مص تر ، موتازه کېدل ، حاجت لرل ، غرض لرل ، اړه لرل.

**احتياجي** :- (اِح+ ت + يا + جي) [پ تر ، ص ، مؤ ، وا ] حاجت ، اړتيا ، موتازي، ضرورت ، لکه : " ... که عمل سره خپل علم پېشوا کا ، د هغوي احتياجي نشته و مرشد ته " (اخون قاسم)

**احتياط** :

**اَرېبګ** :- (اَ + رْ + بې + ګ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] نژدې ، نژدې ، نژدو، خوا ته ، تر څنګه ، اړخ ته ، جوخت ، څنګ ته۔

**اَرېکے** :- (اَ +ر + پَ + کے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : ارپکي] د چت پاسنۍ حصه یا مخ۔

**اَرپکے** :- (اَ + ر + پَ + ګے) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ] هغه کره وړه کناري یا مُشَشر چې د شال یا لوپټې چارچاپېره غاړو ته لګېدلې وي ۔ شورما، چرما

**اَرت** :- (ا + رْ + تْ) [ پ ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا ، ارته ، ج: ارتې) ] فراخ ، پراخ، پلن ، تپړ ، ازاد ۔

کنبېنې په خلوت کنبې شبخه سود ئې راته وايه

ولې په خپل ځان دا هسې ارت جهان تنګ کړې (خوشحال)

**ـــــ تندے** :- لُغ : پراخ تندے ، پلنه تندۀ ، خلاص تندے ، پلن وچولے، پلن تندے ، روڼ تندے ، اص : خوشحال ارواح ، چې تندے ئې تريو نۀ وي ۔ خنده رويه ۔ روڼ تندے ، د چا په تندي کنبې چې ګونجې نۀ وي۔ خندويه. (وزير)

**ـــــ زړے** :- اص : (۱) لوے زړۀ لرونکے ، د لوئې سينې خاوند ، زر نۀ غصه کېدونکے ، لکه : " فلانے ارت زړے سړے دے " (۲) خنده رويه ، خوشحال ارواح ، خوش رويه۔

له هر چا سره خندا په ارت زړۀ کا

خو په ما باندې زړۀ تنګ کا هغه يار خوشحال

**ـــــ لاسے** :- (اص) سخي ، پراخ لاسے ، د سخي زړۀ خاوند ، د ورکړې خاوند

[illegible]

سره مينه نۀ لري "۔

**ـــــ مټ** :- (اص) سخاوت ، په خلاص زړۀ ، مينه او خلوص ، لکه " په ارت مټ مدت راسره وکړه "

**اَرت بيرت** :- (ارت + بې + رْ + تْ) [ پ ، اص ] ډېر ارت ، پراخ ، پلن کشاده ، ويړ ، ازاد ، ارت خوشحال۔ دا ټکے د کور مېدان يا جامو د ارتوالي په حقله وئيلے کېږي۔ لکه : " دا ارت بيرت مېدان دے" يا " ارت بيرت کور کنبې اوسي "

تل چې ارته لمن تۀ څکورې په مزکه

عزه توب لرې د مخ په ځولۍ ځکه خوشحال

**اَرته لمن** :- (اَ + رْ + پَ + لَ + مَ + نْ) [ پ ، اص ] (۱) لويه لمن ، پراخه لمن (۲) د معتبرۍ جامه ، د کبر جامه

**اَرتاؤ** :- (اَر + تاؤ) [ اف : پ (قاموس) ص ] (۱) اړتاؤ ، ګُذار شوے ، پرتاؤ ، غورځېدلے (۲) فاصله ، مزل ، لرې والے ، حد ، د غشي د ګزار هومره۔

**اَرتاوول** :- (اَ + رْ + تا + وَ + ول) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] اړتاوول ګذارول، غورځول ، غشے ويشتل۔ حا : ارتاووي ، ما : ارتاؤکه ، ا : ارتاؤ به کړي۔ امر : ارتاؤ کړه۔

**اَرتاوَوُنکے** :- (اَ + رْ + تا + و + وُنْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع مذ ، وا ، ج : ارتاوونکي ] ګُذاروونکے، ګُذار کونکے، وار کونکے ۔ غورځوونکے ، غوزاروونکے ، راويشتونکے، راتلوونکے رابغوونکے ، راخلاصوونکے

**اَرتاوونګ** :- (اَ + رْ +تا + وَ + وَنْ + ګ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] (و ـــ ارتاوول)

**اَرتاوونه** :- (اَ+ رْ + تا + وَ + وْ + نَ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] ګذارونه، ګذار،وار،ويشتۀ،ويشتنه، غورځونه ، پرزونه ، راچونه۔

**اَرتاوي** :- (اَ + رْ + تا + وي) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] ډېر زيات سُور مويځ ، سره مېوه۔ هغه مويځ چې د نمر په تاؤ سور شوے وي

**اَرتاوېدل** :- (اَ + رْ + تا + وې + د+ ل) [ اف : پ (قاموس) مص لا] لوېدل ، ګذارېدل ، غورځېدل ، پرېوتل ، اړتاوېدل ، ما: ارتاؤ شۀ حا : ارتاوېږي، ا : ارتاؤ به شي ، امر : ارتاؤ شه۔

**اَرتاوېدونکے** :- (اَ + رْ + تا + وې + دُو + نْ + کے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع، مذ ، وا ، ج : ارتاوېدونکي ] ګذارېدونکے، غورځېدونکے ، پرېوتونکے ، لوېدونکے ، غوزارېدونکے، اړتاوېدونکے۔

**اَرتاويز** :- (اَ + رْ + تا + وي + ز) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ، (مؤ وا : ارتاويزه ، ج : ارتاويزې ] اړتاوکے ، فضول او بې هوده خبرې بکواس ، بې سره بې پښو خبرې ، ګډې وډې ، اوتې بوتې ، اکوبکو ، يو غر بل غر ، التې پلتې، ګپې ، الوتے، شګوپې ، ناغوړندې ، ناشولتې ،بې ډبه خبرې ، بې ربطه بې ضبطه خبرې، بې مطلبه خبرې ، سرسامي او پرغزي خبرې۔

**اَرتاويزه** :- (اَ + رْ + تا + ويْ + ز) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ ، وا، ج : ارتاويزې ] (۱) فضول خبره ، بېهوده خبره(۲) بې نخښې ګوله يا ګولۍ۔ (۳) اټکلي ګذار ، بې توکه ګذار ، خطا ګذار ، توکلي ګذار ، د ړوند ګذار و په پټو سترګو ګذار۔

**اَرتګي** :- (اَ + رَ + تْ + ګي) [ اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ] (۱) ارتوالے پراختيا، کشاده والے ، وورتوولے ،پلن والے،واز والے ،ويړوالے ، زياتوالے ، پرېواني ، پرېماني ، ډېر تېر (۲) ارام ، سوکالي ، اسوده تاب

خوب ته وائي.خېب (وز) لولو کېدل.

**اِوړه** :- (ا + رْ + ړَ ) [ پ (خل) ص ، مؤ ] په جمع ، غونډ ، ټول ، په اېر ، په يو ځاے.لکه: "مونږ ورپسې په اوړه لاړو"

**اَوړے** :- (اَ + رْ + ړَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] و ـــ اړړاو.

**اِوړے** :- (ا + رْ + ړَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: اِرړي] (۱) هغه ګډ چې لکی لري .لکيا وار ورائے يا مړ ، اريئے.(۲) جنګې ګډ .

**اَرز** :- (اَ + رْز) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : ارزونه ] (۱)عزت ، احترام ، درناوے ، قدر ، (۲) قيمت ، بها ، (ظفر)

**اَرزان** :- (اَ+ رْ+ زا + ن) [ پ ، فا ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا : ارزانه ، ج: ارزاني ] کم قيمته ، کم نرخه ، ارزون ، (وز) په اسانه په لاس راتلونکے څيز ، اسان ، ويړيا ، وَړيا (ګن) اړيا

مدام اوښکښې تويــه وي د رزق له غمه

دُر ګــوهر پــه بــها پــلوري ارزان ولې رحمٰن بابا

**اَرزان توب** :- (اَرزان + تو + ب) [ پ ،حمص ] ارزاني، ارزانتيا ، ارزونتيب يا [ارزونتوب](وز) کم قيمتي ، ارزان والے.

**اَرزان والے** :- (اَرازان + وا + لَے) [ ب ، ص ، مذ ] (و ـــ ارزانتيا)

**اَرزانول** :- (اَ + رْ + زا + ن + ؤل) [ پ ، مص ، مت ] (۱) په قيمت کښې کمي راوستل ، بيعه کمول ، ارزونول (وز) (۲) بې قدره کول ، ما: ارزان کړۀ ، حا : ارزانوي ، ا : ارزان به کي ، امر : ارزان که.

**اَرزانونه** :- (اَ+رْ + زا + نَ + ؤ + نه) [ پ ، حمص ] ارزانول ، ارزان کول په قيمت کښې کمي راوستل ، بيعه کمول.

**اَرزانوُونکے** :- (اَ + رْ + زا + نَ + وو + ن + کے) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : ارزانوونکي ] بيعه کموونکے ، نرخ راکوزوونکے ، بيعه را غورځوونکے ، قيمت راښکته کوونکے.

**اَرزاني** :- (اَ + رْ + زا + نيْ) [ پ ، فا ، ص ، مؤ ] (۱) د قيمتونو کمي ، د ضرورت څيزونه په کم قيمت خرڅېدل ، په لږه بيعه موندل ، ارزوني (وز ) پرېواني (۲) د يو مشهور شاعر تخلص.

د مــرزا ديــوان مې اومانډۀ په ګوډي

مسخره مې ارزاني خوبشکي زمند کړۀ خوشحال

**اَرزانه ارزاني** :- (اَ+ رْ + زا + نه + ارزاني) [ پ ، اص ] ډېره ارزاني ، زياته ارزاني ، پرېواني.

**اَرزانېدل** :- (اَ+رْ+ زا + نې + د + ل) [ پ،مص لا] ارزان کېدل ، کم قيمته کېدل ، بيعه کمېدل ، پرېوانه کېدل ، بې قدره کېدل ، ډېرېدل ،نرخ کمېدل، بازار سړېدل، ما : ارزان شو،حا : ارزانېږي ، ا : ارزان به شي.

**اَرزانېدنه** :- (اَ + رْ + زا + نې + د + نه) [ پ ، حمص ] و ـــ ارزاني.

**اَرزانېدۀ** :- (اَ+رْ + زا + نې + دۀ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] ارزانېدل کم قيمته کېدل ، قيمت پرېوتل ، قيمت لوېدل ، وړيا کېدل (ګن)

**اَرزښت** :- (اَ + رْ + ز + خ + ت يا اَ + رْ + ز+ ش+ ت) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] (۱) قيمت ، قدر ، جوګه والے (۲) د قابليت مطابق عزت او احترام.

**اَرزول** :- (اَ + ر + زَ + ؤ + ل) [ پ ، مص ، مت (فا : ارزيدن) ] د څۀ جوګه کول ، لايق جوړول ، برابرول ، مناسبت ورکول ، قدر زياتول د څۀ د ښې کول ، د کار جوګه کول ، مـا : وارزوۀ ، حا: ارزوي ، ا: وبه ارزوي ، امر : وارزوه.

**بې اَرزي** :- (بې + اَ + رْ + زِ + يْ) [ پ ، ص ، مؤ ] بې قدري ، بې عزتي

**اَرزېدل** :- (اَ + رْ + زې + د + ل) [ اف : پ (قاموس)، (فا: ارزيدن) مص لا] دڅۀ جوګه کېدل ، قابل کېدل ، مستحق کېدل ، برابرېدل ، مناسبت لرل ، لا ئقت لرل.ما : وارزېدۀ ، حا: ارزېږي، ا: وبه ارزي.

**اَرزېدنه** :- (اَ +رْ + زې + د + نه) [ اف : په (قاموس) حمص ] ارزېدۀ ، قدر قيمت ، عزت ، احترام ، لائقت.

**اَرزېدۀ** :- (اَ + رْ + زې + دۀ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــ ارزېدنه.

**اَرړمے** :- (اَ + ر + ړِ + مے يا اَ + رْ + ژَ + مے) [پ ، اس ، مذ ، وا، ج: ارړمي] اسوېلے ، اوسپلے (وز) باسئ.اغرتے ، ارژمئے ، (ګن) خولۀ باکی ، اډرکے ، اړرمے.

خوارۀ مارۀ چې اوخوري اړرمي په وازه خوله کا

لاس پېښې په بيارته بيارته هر ځاے پرېوځي وغزېږي خوشحال

**اَرړے** :- (اَ + رْ + ړے + يا اَرْ + ژَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، ج: ارړي ] د ډېر خوراک نه پس په خولۀ يو قسم ته بې اختياره اواز د بدهضمی نخښه، ډرکے ، ډکار ، اړړے ، ارژے ، تريو ګرېزائے (وز) غوروچے.

**ـــــ کښل** :- (اص) اسوېلے کول ، اوسپلے وباسل ، باسي کول ، ارژمئے کول ، خولۀ باکی کول، اګرمے کول ، خولۀ بې اختياره وازول.

**اَرړي بد** :- (اَ رړيْ + بَ + دْ) [ اف : پ (قاموس) اص ] بدهضمي ، د زيات خوراک د کبله سخا ارړي کول ، تاروۀ تاروۀ ډکارے راتلل تاروۀ ډرکي کول ، اغېرلي ته ډکاري ورځي.

**ـــــ بدېدل** :- (اص) بد بد ارړي راتلل ، بدهضمي کېدل ، د زيات خوراک د کبله خېټه خرابېدل ، تريو ارړي کول ، تاروۀ اړرمي کول.

**اَرسطو** :- (اَ + رَ + سْ + طُوْ) [ يُو ، اس ، معر ، مذ ] د يونان د يو نامتو فلسفي او حکيم نوم دے چې د سکندر اعظم استاذ ؤ.

ارسطو تــر افــلاطون ښــۀ وۀ سکندر ته

په جهان کښې هر څوک مينه په خپل کول کا خوشحال

**اَرسين** :- (اَ + رْ + سِيْن) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] يو قسم بوټے دے چې زېړ ګل ئې وي.او د پسرلي په اخر کښې پيدا کېږي.

**اِرشاد** :- (ا + رْ + شا + د) [ ع ، مذ ، وا، ج : ارشادونه ] حکم ، فرمان ،امر ، وينا ، (۲) شاعران په مشاعرو کښې د بل شاعر د کلام اورېدو په وخت وائي چې ارشاد .يعني خپل کلام واوروه.

خوئي خصلت چې ازلي وي ئۀ نور ېږي

پــه ارشاد او پــه تــلقين د کامل پير خوشحال

**اَرشميدس** :- (اَ +رْ+شَ+مي+دَ+ س) [ يو ، اس ، مذ ، وا ] د يو ډېر لوے حسابدان نو چې په يونان کښې دحضرت عيسٰی عليه السلام د پيدا وښت نه دري سوه کاله اګاهو پيدا شوے ؤ.

**اَرغاړے** :- (اَ + رْ + غا + ړے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، ج : ارغاړي ] زوَر (يو) زوېر (وز) مخ په کښته.

**اَرغاړيز** :- (اَ + رْ + غا + ړ + ي + ز) [ پ (ظفر) اس ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا : ارغاړيزه ، ج : ارغاړيزي) ] په چل ول کار ايستوونکے، چل باز، چالاک، چلولي، دروغجن، منافق.دوه مخيز، دوه ژنګے، دوه ژبے.

**اِرغال** :- (ا + رْ + غا + ل) [ پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : ارغالونه ] منډه . غل زغاښت، تُندي ، دَو ، تېزي ، تلوار ، جلتي ، بيړه.

وراندي تر ما ولاړل و در بارته په ارغــال

وئي کړۀ بخشي ته له دې حاله قبل و قال خوشحال

**اَرطجه** : bP 7

**اَرياټ** :- (اَ + رْ + يا + ټ) [پ (وز) اس ، مذ ، وا ، ج : اریاټينه] و ـ ارټ

**اَرياش** :- (اَرْ + يا + ش) [پ (ب ، خ) اس ، مذ ، وا ] پېروے ، ملاٸي پروے ، د پيو په سر رش ، لکه : ''چايو سره ارياش راکه'' ـ

**اَريان** يا **اريون** :- (اَ+ رْ + يا + ن + يا اَ + رْ + يو + ن) [پ ، ع : حېران ، ص، مذ ، وا ، ج ، مؤ ، وا: اريانه ، ج : ارياني ] (۱) بې وسه ، موتازه ، **محتاج** ، غريب ، خوار ، **عاجز** (۲) پرېشان ، حېران ، فکرمند ، کارياب ، اړرون (۳) **لل** ، تپک ، تبک ، (په ژبه) (۴) **حاجت من** ، ضرورت من ، اړيا ـ

**ــــــ نښلول** :- (اص) (وـــــ اړ او دُوړ جوړول.)

**اَړائي** :- (اَ + ړا + ئي) [اف : پ (قاموس) ص ، مؤ] (۱) اړه ، موتازي (۲) قحط ، کال ، سره ، چي بارانونه نهٔ وي، سوکړه ، روړه، اچوبيې يا وچوبيې.

**اَړباسل** :- (اَ+ ړ+ با + سَ + ل) [اف : پ (قاموس) مص مت] مجبوره کول مجبورول ، موتازول ، په زور لګيا کول ، څهٔ خبرې ته نيول ، ما : اړيست ، حا : اړباسي ، ا : اړبه باسي ، امر : اَړ باسه

**اَړبنګ**:- (اَ+ ړ + بن + ګ) [پ (خل) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اړبنګان (مؤ ، وا : اړبنګه ، ج : اړبنګې)] (۱) کم عقل ، کاواک ، اړتاوک بړبنګ ، بکواسي و بې وقوف ، بې حيا ،لکه : "هغه هسې اړبنګ دے" (۲) ب ، خ ښکلے ، ښائسته ، دړي دنګ.لکه :"اړبنګ ځوان دے".

**اَړبې اړبې** :- (اَړ + بې + اَړ + بې) [پ (ظفر) ص] خواره غوښه ، بې وازدې غوښه، ډنګره غوښه (ب ،خ) چيچړې چيچړې ، مانده غوښه ، پړومبې،کينګړې ، ګړيندې ، ليبړې.

**اَړپ** :- (اَ + ړَ + پ) [اف : پ (قاموس) امر] چپ ، د چپ کولو دپاره حکم ، د غلي کولو وينا.

**اَړپ کول** :- (اَ+ ړَ+پْ+کَ + وَ + لْ) [پ (خل) مص مت] لواړ تېرول ، شوے تېرول ، زر تېرول ، بغېر شخونده خوړل ، غم کول ، غړپ کول (صوابي) شخوند پرې نهٔ وهل ، ماشومان اپې کول وائي.

**اَړتال** :- (اَ + ړْ + تا + ل) [پ ، ه ، هړتال ، اس ، مذ ، وا ، ج : اړتالونه ، اړتالينه] (۱) ضد ، د يو کار کولو نه انکار ، د احتجاج په ډول کار پرېښول ، سټرائک ، لکه : "مزدورانو اړتال وکړو" (۲) يوه دوائي ، د دارو نوم ، لاريون.

**ــــ کول** :- (اص) ضد کول ، د يو کار کولو نه انکار کول ، په جمع د څهٔ څيز مخالفت کول،حکم نهٔ منل ، سټرائک کول ، لکه :"اړتال کول ښهٔ کار نهٔ دے."

**اَړتاؤ** :-(اَړْ+تا +ؤ) [اف : پ(قاموس) ص ، مذ) (۱

مرغی ده چې وزرې يې تورې دي او پاس لاندې نبغ الوت کوي۔ شغت ، مائي خورکه۔

**اَړدر** :- (اَ + ړ + دَ + رْ يا اَ + ژْ + دَ + رْ) [پ (سو) اس ، مذ ] و ـــ اژدر

**اَړرمئے** :- (اَ + ړْ + ر+مئے يا اَ + ژْ + رَ + مے) [اف : پ (قاموس) اص ، مذ ، وا ، ج : اړرمي ] و ـــ اړرمئے۔

**اَړغونک** :- (اَ + ړ + غُو + نگ يا اَ + ژْ + غُو + نک) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ] يو بدبودار يا بدبويه بوټے دے۔ چې گلونه ئې سپين وي۔

**اَړل** :- (اَ + ړَ + لْ يا اَ + ژَ + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، (مؤ وا : اړله ، ج : اړلې ] ارزومند ، خواهشمن ، په تلوسه کښې۔

بــورا پــه بــوي دگلونو پائي
تل وگندگي ته جعل اړل دے — خوشحال

**اَړبيل** :- (اَ + ړِي + يَلْ يا اَ + ژِي + يَلْ) [اف :پ (قاموس) مص ] و ـــ ازبيل۔ ما : واړبيۀ ، حا: اَړبيي ، ا : واړبيۀ ، حا: واړبيه

**اَړبيلے** :- (اَ + ړِي + يَ + لے يا اَ + ژِي + يَ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : اړبيلي ، (مؤ ، وا : اَړبيلي ] و ـــ ازبيلي

**اَړبيُونکے** :- (اَ + ړِي + يُو + نْ + کې يا اَ + ژِي + يُو + نْ + کې) [اف: پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اړبيونکي ] و ـــ ازبيونکے

**اَس** :- (اَ + سْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اسونه (مؤ ، وا : اسپه ، ج: اسپې ) ] و ـــ اس۔ ( ددې سره تعلق لرونکي ټول اصطلاحات د اس په پټې کښې وګورئ

**اَساس** :- (اَ+ سا + سْ) [ع ، اس ، مذ ،وا ] بنياد ، اره ، رده۔

د ژوندون اساس په باد دے
څــۀ ژوندون څۀ ئې اَساس — خوشحال

**اَساطير** :- (اَ + سا + طِ + يْ + رْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ] قيصې ، قيصې حکايتونه ، مسئلې ، (ب ، خ ) د پيريانو دېوانو قيصې ، قيصې مسئلې۔

**اَسان** :- (اَ+ سا +نْ) [فا ، اس ، مذ ، (مؤ ، ا: اسانه ، ج : اساني ] (و ـــ آسان) (ددې سره متعلق نور اصطلاحات د اسان په پټے کښې وګورئ)

**اَسباب يا اسبوب** :- (اَ + سْ +با+ب يا اَ + سْ + بو + بْ ) [ ع، اس ، مذ ،ج،پ،وا ، ج : اسبابونه ] لُغ : دسبب جمع ، سببونه ، علتونه ، اص : (۱) اسباب کټ پوزے ساز و سامان ، بستره، لوښي کودي لکه : "مېلمه ته اسباب واچوه" ۔ (۲) د تشو بولو ځاے ، پلاند اسمان ، (۳) د اُستکارو کالي ، خصوصاً د نايانو

چــې مرغونـه وزر بيا مومي الوځي
هېڅ مقصود تر سره نۀ ځي بې اسبابه — خوشحال

**ـــــ اَچول** :- (اص ) (۱) خپل سامان کښېښودل ، چېرته ډېره کېدل ، (۲) مېلمه ته کټ پوزے سمول۔

**ـــــ تړل** :- (اص ) (۱) سامان تړل ، لوښي کودي تړل (۲) يو ځاے نه رخصتېدل ، يو مقام نه تلل (۳) مړ کېدل ، د دنيا نه کوچ کول۔ (۴) په خاروي کډه بارول

**ـــــ تيارول** :- (اص ) (۱) سامان جوړول ، لوښي کودي تيارول ، (۲) څۀ کار ته وسيلې جوړول ، سفارش پيدا کول ، (۳) د سفر تياري کول ، کډه تړل۔

**ـــــ جوړول** :- (اص) (و ـــ اسباب تيارول)

**مال ـــــ جوړول** :- (اص) سامان لوښي کودي ، کډه کوډه۔

مال اسباب مې کړۀ خريد د تجارت
پس د هـغه د سفر مې ورکړۀ نيت — نعمت الله

**اَسباط** :- (اَ+ س + با + ط ) [ع ، اس ،مذ ، ج ، وا : سبط ] نمسي نمسی ، اولاد ، نوسه نوسي۔

سل پېغوره به درکا چې زړۀ ئې بد شي
که دې پلار وي ، که زمان وي که اسباط — علي خان

**اَسپاب** :- (اَ+ سْ + پا + بْ ) [پ (کاکاخېل) اس ، مذ ، ج ] بسترې ، کټ اسپاب ، کټ بستره

**اَسپ بخش** :- (اَ+ سْ + پْ + بَ + خْ + شْ) [فا ، اس ، فا ع ، مذ ، وا] اس بخښونکے،اس ورکوونکے، سخي ، ښۀ ځوان ، لکه : "ملک احمد ورته اووئيل چې جهان پناه اسپ بخش ؤ" (تواريخ رحمت خاني)

**اَسپتال** :- (اَ+ سْ + پَ + تا + ل ) [پ ، انګ ، هاسپيټل ، اُر : هسپتال اس ، مذ ، وا ، ج : اسپتالونه] هستپال ، استپال ، شفاخانه ، روغتُون ، لکه : "دا مريض اسپتال ته وُرسوئ"

**اُسپرين** :- (اُ + سَ + پْ + رِ + يْن ) [پ (ب، خ) ص ] گول ، سخت ، غنډې ، ډګوسي ، سنګيني ، لکه : "د اُسپرين کاڼي کوټه مه جوړه وه"

**اِسپغول** :- (ا + سَپْ + غو + ل) [فا : اسپغول ، اس ، مذ ] سپېغول ، ايسبغول ، ايسپ ګُل ، سپه غول ، د يو ورکوټي بوټي تخم چې د خېټې د اړا ؤ د ګرمۍ دپاره د دارو په ډول استعمالېږي۔او سوربخن رنګ لري۔

**اَسپکه** :- (اَ + سْ + پَ + که) [اف : پ (قاموس) اس مؤ ] د خړ رنګ يو بُوټے چې ګُل ئې سپين وي او د ځينې مرضونو دپاره د دوايې په ډول استعمالېږي۔

**اَسپکي** :- (اَ+سْ + پَ + کَے ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا، ج : اسپکي ] (۱) هغه څوک چې اسونه پېژني ، (۲) د اسپ اسم تصغير ، وړوکے اس۔

**اَسپلاغ** :- (اَ + سْ + پَ + لا+ غ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] پالک د پالکو سابۀ ، د پالکو ساګ ، طبي نوم ئې اسپناخ دے۔

**اُسپنخور** :- (اُ + سْ + پَ + نْ + خو + رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ] (۱) سُوان سوهان ، سبون ، سپنخور ، لکه : "دا اُسپنه په اُسپنخور وُمړه" (۲) هغه کاڼے چې چړې اچاړې ] چاقوان پرې تېرۀ کوي۔ برجو۔

**اُسپنخړې** :- (اُ+سْ+پَ+نْ+خَ+ ړې) [پ،اس، مذ ، وا ، ج: اُسپنخړې] (۱) د اوسپنې ګندګي ، بوره يا خيرے ، سپنخړے ، د اوسپنې کُشته۔ (۲) په اشنغر کښې د يو کلي نوم دے۔

**اُسپن ذات** :- (اُ+پْ+پَ+نْ+ذا +ت) [پ ، ص] مضبوط ، کلک کوټلے ، سخت

**اُسپن کاڼے** :- (اُ + س + پَ + ن + کا + ڼے ) [پ (کاکاخېل) اس ، ص ، مذ ، وا ] داسې کاڼے چې د عام کاڼو نه ئې وزن زيات وي۔ رنګ ئې توربخن وي اوسُوري سُوري وي۔ د اوسپنې کاڼے ، لکه :"دا اوسپن کاڼے خومره درون دے "۔

**اُسپنه** يا **اِبسپنه** :- (اُ + سْ + پَ + نه + يا اي + س + پَ + نه ) [ پ ، اس مؤ ، وا : ج : اوسپنې ] (۱) اوسپنه ، ووسپنه۔ متل : اوسپنه په اوسپنې پرې کېږي " (۲) اص : وسله ، برګ لکه : "په کور کښې څۀ اوسپنه لرې؟" (۳) کلک ، مضبوط ، سخت۔

**ترخه ـــــ** :- (اص) کلکه اوسپنه ، هغه اوسپنه چې د کړولو سره ماتېږي۔ بې کاره اوسپنه ، بې ښې اوسپنه ، دبګچون۔

د تــرخې اُسپنې تُوره کړه سازه
غزا به کله په هغه شمشېرو کړې — خوشحال

**خوږه ـــــ** :- (اص) نرمه اوسپنه ، چې ماتېږي نه۔ ښۀ اوسپنه ، چوڼ اوسپنه ، فولاد ، پولاد۔

**د اُسپنې** :- (مح) (۱) د اوسپنې نه جوړ ، د اوسپنې په شان ، فولادي ـ لکه : " د هغهٔ بدن د اوسپنې دے " (۲) محنتي ، خواري کښ

**د ـــ چنې چیچل** :- لُغ : د اوسپنې نه جوړې شوې چنې خوړل۔ اص : ډېر ګران کار ته لاس اچول ، نهٔ کېدونکے کار شروع کول ، په ګران کارځان عذابول ،سخت محنت او خواري کول ، کاڼي چیچل

**اُسپنو روغ** :- (اُ + سْ + پَ + نو + رو + غ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج ، (مؤ وا : اُسپنو روغه ، ج : اُسپنو روغې) ] لُغ : د اوسپنې نه جوړ۔ اص : ډېر سخت او کلک

**اَسپویلے** :- (اَ + سْ + پو + يَ + لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اسپویلي ] هغه ځوک چې ښې جامې اچوي۔ کړهٔ وړهٔ ئې ښهٔ او عادتونه ئې سپېڅلي معلومېږي۔دروند ، خوږ سړے سپین روبے ،

**اَسپه** :- (اَ + سْ + په) [پ ، اس ، مؤ ، وا] (۱) د اس ماده (۲) یو قسم مرض۔

سر تر پایه میني اونیوم په لاس کښې
که ختلے مې په تن باندې اَسپه ده معزالله خان

**اَست** :- (اَ + سْ + ت) [اف ، پ (قاموس) فا ، هست ] پېداوښت ، شته ، هست والے ، شته والے ، موجود والے۔

دا فقیر دولت یو مست یم
د اشـنا په مینه است یم
پـه ازل مې شراب څښلي
دیـــوانـه یم لا تر اوسه دولت

**ـــ کول** :- (اف ، مص تر) پیدا کول ، تخلیق کول ، په وجود کښې راوستل ، د نیشت نه شتهٔ کول ، هست کول۔

**ـــ کېدل** :- (مص تر) پیدا کېدل و تخلیق کېدل ، د نیشت نه شتهٔ کېدل۔

**اَستاځګر نه** :- (اَ +سْ + تا + دُز + ګَ + رَ + نه ) [ اف : پ (قاموس) ص] استازګېرنه،استونه ،خبر وړنه ، پېغام رسونه ، سوال ځواب کونه

**اَستاځوالے** :- (اَ + سْ + تا + دُز + وا + لَے) [اف : پ (قاموس) ص] و ـــ استاځګرنه۔

**اَستاځے** :- (اَ + سْ + تا +زَے ) [ پ ، اس،ص ، مذ،وا، ج: استاځي] استازے ، استولے شوے ،قاصد ،پېغام وړونکے ، خبر رسوونکے ۔ یا لکه : " د یار استاځے راغے "۔

په استاځي نور څهٔ نشته بې ابلاغ علي خان

**ـــ کول** :- (اف ، مص تر) استول ، قاصد جوړول ، پېغام ورکول۔

**ـــ کېدل** :- (اف) مص تر ، استول کېدل ، قاصد جوړېدل ، پېغام راوړل۔

**د مرګ ـــ** :- اص ـ (۱) د مرګ قاصد ، اجل ، د مرګ پېغام راوړونکے د مرګ پیاله پرې څښونکے ، عزرائیل [۴] (۲) سپین وېښتهٔ یعني بوډاتوب ۔

هم مې سپین وېښتهٔ په ږیره کښې ځرګند شه
دا د مــرګ اســتاځـي راغے زړهٔ مې بند شهٔ ملا نعمت الله

**اِستاد** :- (اِ+سْ + تا + د ) [فا ، ص ، مذ ] ولاړ ، چې حرکت نهٔ کوي۔ قایم

هم دا هسې راشي تېر شي
پـــه ځاے نهٔ لري اِستاد خوشحال
لکه شمع مسقتیم په خپل اِستاد یم رحمٰن بابا

**اِستاده** :- (اِ +سْ + تا + دَه) [فا ص] ولاړ شوے ، وُدرېدلے ، لاس په نامه اودرېدلے

پـــه مــراد چې رسېده شو
په خدمت کښې استاده شو رشید

**اُستاد** :- (اُ+ سْ + تا + د ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : اُستاذان (مؤ ، وا : اُستاده ، ج : اُستادې ) ] (۱) استاذ ، ایستوذ ، اخون ، سبق ښایونکے ، معلم ، ښونه شوونکے ۔ (۲) پوهه ، ماهر ، آزموده کار، په خپل کسب کښې کامل (۳) کاریګر ، کسب ګر (۴) چالاک ، چلولي ، لکه : " پوره استاد دے "۔

خپل اُستاد و ماته اووې څو پندونه
هر یـو پند ئې ملغلرې دي لعلونه
په بده چار کښې کامل اُستاد وي خوشحال
دواړه سترګې ئې اُستادې د جادو وې صدر خان

**ـــ دې پوخ دے** :- مح۔لُغ : پوخ استاذ لرې ، زده کړه دې کړې ده۔ اص : (۱) تهٔ ډېر هوښیار ئې۔تاته ځوک دوکه نهٔ شي درکولے ۔ (۲)پیر دې کامل دے

**ـــ دې کچه دے** :- (مح ) چالاکي دې ښکاره شوه ۔ تګي دې ځرګنده شوه ۔ زده کړه دې پخه نهٔ ده ۔

**ـــ والے** :- (اس ص) و ـــ استادي۔

**اُستادي** :- (اُ + سْ + تا + د + يْ ) [ فا ، اس ص ، مؤ ، وا ، ج : استادي] (۱) استاذي ، سبق ښائل ، فن ښائل ، معلمي ، مدرسي ، لکه:"ددهٔ استادي منم "۔ (۲) مهارت ، کامل والے ، په فن کښې تکړه والے ، پوره والے ، د فن کمال۔ لکه : " هغهٔ نن خپله استادي ځرګنده کړه " ۔ (۳) چالاکي ، تګي ، عیاري ، شرارت ، ورانے ، دوکه ، لکه : " ما سره استادي مه کوه "۔

**ـــ شاګردي** :- اص۔استاد او د شا ګرد تعلق ، استاذي شاګردي۔

**ـــ ښائل یا ښودل** :- اص۔(۱) خپل مهارت یا قابلیت ښکاره کول۔خپل علم ځرګندول۔(۲) د لاس صفائي ښائل ، تګي کول۔چاته په غرېدلو سترګو کښې دوکه ورکول۔د ویښې مور نه زوے تښتول چالاکي کول ، سترګو کښې خاؤرې اچول ، د سترګو نه رانجهٔ پټول۔سیند ته تږے بوؤل او بیا تږے راوستل۔

**اُستادولي** :- (اُ +سْ + تا + د+ وَ + لِيْ) [پ، اس ، ص ، مؤ ] استاذولي استاذ ګیري ، استاذ والے ، معلمي ، مدرسي۔

**اُستاذ** یا **ایستوذ** :- (اُ + سْ + تا +ذ+ یا ا + یس + تو + ز ) [پ ، اس ، مذ ،وا ، ج : اُستاذان یا ایستوذون ، (مؤ ، وا : استاذه یا ایستوذه ، ج : استاذې یا ایستوذې ] (و ـــ استاد )

چې بې اُستاذ وي لاغشے نـهٔ دے
چې ښهٔ ئې ساز کا سړے هالهٔ دے خوشحال

**ـــ والے** :- (اس ص) (و ـــ اُستادي)

**ـــ والي** :-(اُ+سْ+تا+ذ+وَ+لِيْ) [پ،اس ، ص ، مؤ] و ـ استادولي)

**اُستاذي** :- (اُ + سْ + تا + ذِيْ ) [ پ ، اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : اُستاذې] و ـــ اُستادي۔

**ـــ کول** :- (اص ) لُغ : د استاذۍ پېشه خپلول۔اص : (۱) په څهٔ کار کښې خپله تجربه او مهارت ښائل۔(۲) چالاکي کول ، تګي کول چا سره دوکه کول۔

**ـــ منل** :- اص۔د چا د عقل پوهې کمال منل ، د چا هوښیارتوب منل د چا د هوښیارتیا نه متاثره کېدل۔

**اَستانه** :- (اَ + سْ + تا + نه) [فا : اس ، مؤ ، وا ، ج : استانې ] و ـ آستانه

**اِستبداد** :- (اِ + سْ + ت +بْ + دا+ د ) [ع ، اس ، مذ ، وا ] ظلم ، زور زیاتے ، سختي ، ناروا ۔

ظلم جور که استبداد که ناروده
چـې تـــا د لاسـه ده په ماروا ده

**اَستپال** :- (اَسْ + تَ + پال) [ پ (بټ) اس ، مذ ، وا ، ج : استپالونه ] (و ـــ اسپتال) لکه : "زهٔ استپال ته ځم "۔

**اِستحکام** :- (اِ + سْ + ت + حْ + کا + م ) [ ع ، ص ، مذ ] پوخوالے ، مضبوط والے ، کلک توب ، پخوالے ، محکم والے ، ټینګ او کلک اودرېدل۔

پاس په غرهٔ باندې محکم ؤ چا وهلے
د کـوهاټ تر کوټ ئې ښهٔ استحکام        خوشحال

**استخاره** :- (ا + سْ + ت + خا + ره) [ع ، اس ، مؤ ، وا ، ج : استخارې] لُغ : خیر غوښتل ، د خیریت دُعا غوښتل ، اص : فال ویستل ، مسلمانان د څهٔ مقصد دپاره د غیبي اشارې په اُمید دوه رکعته نفل نمونځ وکړي او په خوب کښې الله پاک ورته څهٔ لار وښائي۔

چـــې شـــپـــې اســتـخاره اوکـړم دلـــبـره
ستا د مینې په اور اووینم خپل ځان وریت        مطیع الله

**اُستخوان** :- (اُ + سْ + تُ + خوا + ن) [فا ، اس ، مذ ، وا] هډوکے ، اډوکے هډ ، اډ ۔

عاقبت ئې په گوشه کښې یو ځاے بیا موند
پروت یو موټے استخوان ؤ هما ئې بیا موند        حمید

**استدعا** :- (ا + سْ + تَ + دْ + عا) [ع ، ف ، مؤ ، وا ، ج : استدعاگانې] غوښتنه ، سوال کونه ، درخواست ، منت ، خواهش ، دعوت ، گذارش۔

په دنیا کښې مې اونهٔ کړه
هېـڅ صـــرفه د استدعا        علي خان

**استدلال** :- (ا + سْ + ت + دْ + لا + لْ) [ع ، ف ،مذ ،وا ، ج: استدلالونه] دلیل راوړل ، ثبوت پېش کول ، حجت کول۔

سید امیراؤ میر بابا دواړه حاضر دي
کـــه ددې خـــبرې غواړې استدلال        خوشحال

**اَستر** :- (اَ + سْ + تَ + رْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : استرونه] (۱) هغه رخت چې د جامې لاندې لگېدلے وي۔ لکه د کوټ یا د برستن استر، د برغدې ، برغې، بغرگې یا غبرگې کپړې لاندې مخ۔(۲)اص : ځرمن ، خور۔

هله ئې پرېږدې په قلاره
چې جدا ترې نه اَستر کړې        غني

**ـــــ اچول** :- استر خېژول ، استر بدلول ، استر لگول ، د برستنې، کوټ یا واسکټ دننه لگېدلے زوړ رخت په نوي بدلول۔

**ـــــ بدلون** :- (ف) استر نوې کول ، بل استر لگول ، زوړ استر لرې کول او نوے لگول ، لکه : "ددې برستنې استر بدلول غواړې"

**ـــــ خېژول** :- (ف) (و ـــ استر اچول)

**ـــــ لگول** :- (ف) (و ـــ استر اچول)

**مخ ـــ کول** :- (اص) مخ ملازه کول ، رُورعایت کول ، په چا احسان خېژول۔

**استراحت** :- (ا+ سْ + ت + را + حَتْ) [ع ، اس ، م ، وا] ارام کول ، خوب کول ، دمه کول۔سکون ، لکه : "لږ استراحت اوکړه"۔

**اُسترانې** :- (اُ + سْ + تْ + را + ن + ړ + ي) [پ ، اس ، مذ ، ج، (مؤ وا ، ج : اُسترانۍ)] د پښتنو یوه قبیله چې د ډېره اسماعیل خان سره نزدې په قبائلي علاقه کښې اوسېږي۔دوي ښهٔ ښاروي ساتي او د هغو تجارت کوي۔

**اُسترانے** :- (اُ+ سْ + تَ + را + نْ + ړي) [پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : اُسترانې ، ج : اُسترانۍ)] د اُسترانې قبیلې یو غړے۔

**اُسترانې** :- (اُ+ سْ + تْ + را + نيْ) [پ ، اس ، مذ ، ج] و ـــ اُسترانے

**اُسترانې** :- (اُ+ سْ + تْ + را + نې) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا، ج : اُسترانې] (و ـــ اُسترانے)

**اُستربل** :- (اُ+ سْ + تَ + رْ + بَ + لْ + ] اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اُستربلونه] لکۍ ، شا ، دُنبال ، روستو طرف ، اوستربل

**اَسترول** :- (اَ + سْ + تَ + رَ + وَ + لْ) [اف ، پ (قاموس) مص مت] استر اچول ، استر خېژول ، استر بدلول ، ما : استر که ، حا : استر وي ، ا : استر به کې ، امر استر که ۔

**اُستره** :- (اُ + سْ + تَ + ره) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اُسترې] پاکي ، د وېښتو خرئیلو چاړهٔ۔لکه "ږیره دې په اُستره کله شه"۔

**استري** :- (ا + س + تْ + رِيْ) [ه ، وادهٔ کړې ښځه ، اس ،مؤ ، وا، ج: استریانې ، استرگانې ، استرۍ ] د اوسپنې څیز چې د گرمولو نه پس ئې په جامو تېروي او گنځې پرې هواروي۔او ټو۔اص : بې شرم ، اوار ، چې څهٔ خبره اثر پرې نهٔ کوي۔لکه "فلانے ښهٔ استري دے"۔

**ـــــ ماتول** :- (اص) څوک بې عزته کول ، د چا شرمول ، د چا جامې لتې خرابول۔

**استسقاء** :- (ا + سْ + ت + سْ + قا) [ع ، س ، ص ، مذ] لُغ : اوبهٔ غوښتل ، اص : (۱) د یو مرض نوم دے چې بنیادم په کښې زیات تږے کېږي۔جل وهلے ۔(۲) د رحمت باران دپاره په جمع نمونځ او دُعا ته د استسقاء نمونځ وائي۔

**استطاعت** :- (ا +سْ+ ت + طا + عَ + تْ) [ع ، اس ، مذ، وا ] وس ، طاقت ، حېثیت ، قدرت ، زور ، توان ، توفیق۔لکه : "د کتاب اخستو استطاعت مې نشته"

**استعاره** :- (ا+ سْ + ت + عا + ره) [ع ، اس ، مؤ ، وا ، ج : استعارې] لُغ : پور اخستل ، اص : یو ټکے د اصلي معنو په ځاے په نورو معنو کښې استعمالول په دې دواړو ټکو کښې یعنې اصلي او مرادي کښې د تشبیه تړون وي ۔مثل : "استعاره له مستعیره لکه سپے چې ډوډۍ غواړي له فقیره"۔

**استعداد** :- (ا+ سْ +س+ عْ + دا + د) [ع ، اس ، مذ ، وا، ج : استعدادونه] قابلیت ، لیاقت ، دماغي قوت ، پوهه ،توان ، توفیق،مالي حېثیت ، وس،لکه : "ماکښې هېڅ استعدادنشته"

**استعفا** :- (ا+سْ + تَ + عْ + فا) [ع،اس،م،وا ، ج : استعفٰی ، استعفاگانې] استیفا ، استیپا ، بخښنه ، د نوکرۍ پرېښودو درخواست ، د یو کار نه لاس اخستل ، څهٔ کار پرېښول۔

اے چې ستا د یار د غمه استعفا ده
کـه سینه دې له زنگاره نه صفاده        خوشحال

**استعمال** :- (ا+ سْ + ت + عْ + ما + ل) [ع ، اس ، مذ ، وا] (۱) عمل ، د یو څیز نه کار اخستل ، څهٔ شے په کار راوستل ، څهٔ څیز په کار اچول۔(۲) کنځل۔

طبیعت مې عطائي نهٔ د تحصیل دے
کـــه خـــبر یم د اصلاح په استعمال        خوشحال

**استعمالول** :- (ا + سْ + ت+ عْ + ما + لَ + وَ، لْ) [پ ، مص ، مت] (۱) په کار راوستل ، استعمال کول ، د څهٔ څیز نه کار اخستل ، په کار اچول (۲) په یو څیز باندې تجربه کول ، (۳) د چا د خپل مقصد دپاره آله کار جوړول ، (۴) د کنځلو په ډول هم وئیلے شي ۔ما : استعمال که ، حا : استعمالوي ، ا : استعمال به کې ، امر: استعمال که۔

**استعمالونه** :- (ا+ سْ + ت + عْ + ما + لَ+ وَ ، نه) [پ ، حمص] (۱)استعمال کونه ، په کار راوستنه ، (۲) تجربه کونه ، ازماینه ۔(۳) د خپل مقصد دپاره اله کار جوړونه ، (۴) د کنځلو په ډول هم وئیلے شي۔

**استعمالول** :- (ا+ سْ + ت + عْ + ما + لَ + وَ ، لْ) [پ ، مص مت] (۱)په کار راوستل ، استعمال کول ، د څهٔ څیز نه کار اخستل ، په کار اچول (۲) په یو څیز باندې تجربه کول (۳) د چا د خپل مقصد دپاره اله کار جوړول (۴) د کنځلو په ډول هم وئیلے شي ۔ ما : استعمال کهٔ ، حا: استعمالوي ، ا: استعمال به کې . امر استعمال که۔

**اِستعمالونه** :- (ا + سْ + ت + عْ + ما + لَ + وَ ، نه) [پ ، حمص] (۱)استعمال کونه ، په کار راوستنه (۲) تجربه کونه ، ازماینه ، (۳) د خپل مقصد دپاره اله کار جوړونه (۴) د کنځلو په ډول هم وئیلے شي۔

**اِستعمالي** :- (ا+ سْ + ت + عْ + ما + لي) [پ ، ص) د استعمال قابل ، د استعمال جوګه ، استعمال کېښې راغلے ، په کار راوستے۔

**اِستعمالېدل** :- (ا + سْ + ت + عْ + ما + لې + دَ + ل) [پ ، مص لا] (۱) استعمال کېدل ، په کار راتلل ، کار جوګه کېدل ، په کار راوستے کېدل ، (۲) د چا د مقصد دپاره اله کار جوړېدل ، (۳) د کنځلو په ډول وئیلے شي۔ما: استعمال شه ، حا : استعمالېږي ، ا: استعمال به شي۔

**اِستغاثه** :- (ا + سْ + ت + غا + ثه) [اس ، مؤ ، وا ، ج : استغاثې] (۱) مدد غوښتل ، دعوٰی کول ، فریاد کول ، شغاسه (۲) انصاف غوښتل ، (۳) شکایت کول۔

**اِستغفار** :- (ا + سْ + تَ + غْ + فا + ر) [ع ، اس ، مذ ، وا] بخښنه غوښتل ، د ګناهونو معافي غوښتل ، توبه کول ، د توبې دُعا۔

استغفار په خولهٔ په زړهٔ د شر فکرونه
بیا له خپله استغفاره شرمسار شم      خوشحال

**ــــ لوستل** :- (مص تر) بخښنه غوښتل ،د خدا ے پاک نه د رحم دُعا کول ،توبه کول ، توبه غوښتل ، لکه : " د نمانځه نه پس استغفار لوستل پکار دي "۔

**اِستغفرالله** :- (ا + سْ + تَ + غْ + ف + رُ + الله) [ع ، کلمه] (۱) د خدا ے تعالٰی نه معافي غواړم ، د خدا ے تعالٰیٰ نه بخښنه غواړم ۔ (۲) خدا ے تعالٰی دې نهٔ کړي۔ د ځینې عبرتناکې واقعې په اورېدو خلق استغفرالله وائي۔

سحر چې پاځې په استغفار کښېنې
پــه یــادولو د خــپل غـفار کښېنې      خوشحال

**اِستغنا** :- (ا + سْ + ت + غْ + نا) [ع ، اس ،مؤ] (۱) بې نیازي ، د ضرورت نه خلاصے موندل ، بې پروائي۔(۲) صبر ، قناعت ، بې طمعې۔

د عاشق سره چې هومره استغنا کړه
شــائسته پــه خپل جمال لري تکیه
چې غني په قناعت شو
له هر چا ئې استغنا شي      خوشحال

**اِستفسار** :- (ا+سْ + ت + فْ + سا + رْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : استفسارونه] سوال ، تپوس ، پوښتنه ، سوال ځواب ، پوښتنه راپوښتنه ، پوښتنه اخلتنه۔

**اِستقامت** :- (ا+ سْ + ت + قا + مَ + تْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] (۱) نېغ ودرېدل ، ځان نېغ ساتل (۲) په څهٔ کار یا خبره باندې مضبوط اوسېدل ، مضبوطیا ، استقلال۔ (۳) په ساه صورت کېدل ، حال ښهٔ کېدل ، په حوصله کېدل۔

**ــــ په ځاے کول** :- (مح) هوش په ځاے کول ، پرېشاني او ویره لرې کول ، ساه صورت په ځاے کول ، حواس په ځاے کول۔

**ــــ په ځاے کېدل** :- (مح) تسلي کېدل ، یره لرې کېدل ، ساه صورت په ځاے کېدل ، حوصله (اوسله) برابرېدل ۔

**اِستقبال** :- (ا+ سْ + ت + قْ + با + ل) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج :استقبالونه] (۱) مخکښې تلل ، وړاندې تېرېدل (۲) د سترې مشي دپاره وړاندې تلل ، د عزت او درانوي دپاره د چا ځا ے ته تلل ۔ (۳) راتلونکے وخت ، راتلونکې زمانه ، د فعل یو قسم مستقبل

**اِستقراء** :- (ا+سْ+ت+راء) [ع ، اس ، مذ ، وا] لټون ، څېړنه ، تلاش۔

**اِستقلال** :- (ا+ سْ + ت +قْ + لا + لْ) [ع ، اس ، مذ،وا] (۱) مضبوطیا ، ضبط ، تحمل۔ (۲) پائیداري،استحکام ،پوخوالے ، ځوانمردي ، ثبات (۳) ازادي ، خپلواکي۔لکه : " د جشن استقلال تماشې ته به ځو "

**اُستکار** :- (اُ + سْ + تَ + کا + ر) پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اُستکاران (مؤ ، وا: اُستاره ، ج : اُستکارې) ] (۱) کسبهٔ ، کسب ګر ، کاریګر ، لکه : " فلانے زمونږ د کلي اُستکار دے " (۲) ماهر، پوهه ، د خپل کار اُستاد ، لکه : "هغه اُستکار سړے دے "۔

**اِستکبار** :- (ا+ سْ + ت + کْ + با + ر) [ع ، اس ، ص، مذ ، وا] کبرجن ، لوئي ، کبر ، غرور ، فخر ، ویاړ ، غاوعي ، لوے نظري دماغي۔

**اِستل** :- (ا+ سْ + تَ ، ل) [پ ، مص ، مت) ایستل ، باسل ،یستل ، بهر کول ، اُباسل ، لکه : " دا صندوق استل پکار دے "۔

**اِستماع** :-(ا + سْ + تَ + ما ، ع) [ع ، اس ، مذ ، وا] اورېدل ، اروېدل ، غوږ نیول ، سماع ،

**اَستمبول** :- (اَ+ سْ + تَ + مْ + بو + ل) [اف : پ (قامو س) اس ، مذ ، وا: ج : استمبولان] (۱) د ستمبول ، دستمبو ، یو قسم خوشبویه ګل ، عطر ، خوشبو (۲) د باجوړ په علاقه د سړو نوم۔

**اِستمداد** :- (ا+ سْ + ت + مْ + دا + د) [ع ، اس ، مذ ، وا] د چا نه مدد غوښتل ، چاته اسره کول ، لکه : "د حاجت په وخت د چا نه استمداد کول پکار دي "

**اِستمرار** :- (ا+ سْ + تَ + مْ + را + ر) [ع ، اس ، مذ ، وا] همېش والے همېشه پاتې کېدل ، تل تر تله ، تر عمره عمره ، تر ډېرې زمانې پورې ۔

**اِستمراري** :- (ا + سْ + ت + م + را +ر + يْ) [ع ، ص] دهمېشه دپاره دائمي ، مسلسل ، جاریه ، د ماضي د فعل یو قسم ، نهٔ ختمېدونکے ، لکه : " د ماضي استمراري ګردا وکړه "۔

**اَستناوه** :- (اَ+ سْ + تَ + نا + وه) [اف : پ (قاموس) ص ، مؤ] مالي حق ، لوئي ، لوے والے ، بزرګي۔

**ــــ درلودل** :- (اف) اص ، په چا حق لرل۔

**اِستنبول** :- (ا + سْ + تَ + نْ + بو + ل) [اس ، مذ ، وا] د ترکي یو مشهور ښار چې زوړ نوم ئې قسطنطنیه وو او په اصل کښې دا ټکے اسلام بول وو۔په ځینې پخوانو کتابونو کښې استمبول هم لیکلے شوے دے۔

**اِستنجاء** :- (ا + سْ + ت + نْ + جا) [ع ، اس ، مؤ ، وا ،ج : استنجې] د بهر ته تلو نه پس ځان په لوټه یا اوبو پاکول ، لوے اودس کول ، سینجه۔

لــه کوره لوټه واخلي استنجا لره روان شي
تقوٰی تر هسې حده په اولجه ئې وړي که زر شته (خوشحال)

**د ــــ لوټه** :- (اص) لُغ : هغه لوټه چې د بهر د تلو نه پس استعمالېږي اص : حقیر څیز ، بې ښې توښې ، بې مطلبه څیز ، پرېوتے ، غورځېدلے ،ناکاره ، بې خونده ، بې عزته ، ذلیل ، سپک ، لکه:" هغه خو د استنجا لوټه ده "۔

**اَستوائے** :- (اَ+ سْ + تَ + وا + دْزَ ے) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا] (و ــــ استائے)

**اُستوار** :- (اُ+سْ + تُ + وا+ ر) [فا ، ص] (۱) مضبوط ، ټینګ ، پوخ ، پائیدار ، کلک ، کوټلے (۲) هوار ، سم ، برابر۔

که دې سر ځي که دې مال ځي که دې نور څهٔ
اُســتوار اوســــه پــــه کــار د رفــاقــت      خوشحال

**استوږه** :- (اَ + سْ + تو + ږه یا اَ + سْ + تو + ګه) [پ، اس ، مؤ ، وا] استوږنه ، اوسېدنه ، مېشته کېدنه ، استوګنه ، آبادېدنه ، دېره کېدنه۔

**اَستوغان** :- (اَ+ سْ + تُو + غا + ن) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) طاقت ، زور ، صبر (۲) ستُونے ، حلق۔

**اَستوګن** :- (اَ + سْ + تو + ګَ + نْ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا] اوسېدونکے ، مېشتهٔ کېدونکے ، اباد بدونکے ، باشنده ،لکه : " زهٔ دلته استوګن يم "

**اَستوګنځاے** :- (اَ + سْ + تو + ګَ + نْ + دزا + ئے ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ] د اوسېدو ځاے ، د استوګنې ځاے ، کور ، کلے ، وطن۔

**استوګنه** :- (اَ +سْ + تو + ګْ + نه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا] و ــ استوره ، د خداے پاک د مقربو فرښتو نه د يوې فرښتې نوم ۔چې د قيامت په ورځ به آخري ځل شپېلۍ غږوي ۔ يا لکه :"چې اسرافيل شپېلۍ پُو کا تحت الثري وته به هله ورسېږي ۔"

چې استوګنه په پردي وطن کښې کاندې
هــغــه نـهٔ لري د هېڅ څهٔ واک اختيار رحمٰن بابا

عزرائيل ئې عذر ګاه ته په هر ګام کښې
اســرافيل ئې تهٔ تمام په اهتمام کښې حميد

**ــــ کول** :- (اف ، اص) اوسېدل، مېشتهٔ کېدل ، ډېره کېدل۔

**ــــ نيول** :- (اف) اص ۔د اوسېدلو دپاره ځاے نيول ، د مېشتهٔ کېدلو دپاره کور اخستل ۔ډېره نيول۔

**اَستول** :- (اَ + سْ + تَ + وَ + ل ) [ پ ، مص ، مت ] و ـــ استول ، ما : واستاوهٔ ، حا: استوي ، ا : وابه ستوي ، امر : واستوه

**اِستيزا** :- (ا + سْ + تيْ + زا ) [اف: پ ، ع ، استيضاح ، اس] هغه سوال چې په اسمبلۍ کښې پوښتلے شي ۔ په اسمبلۍ کښې د څهٔ خبرې د وضاحت غوښتلو دپاره سوال کول ، په سوال رښا اچول۔لکه : " زما د استيزا ځواب راکړه "

**اِستيصال** :- (ا + صْ + تيْ + صا + ل ) [ ع، اس ، مذ] د وېخ نه ويستل د مُنډه ايستل ، بربادول ، تباه کول ، بيخ بنياد ويستل ، مونډ ويستل ، د جړه ويستل ، بُن سټ ويستل ، کون ستې ويستل

**اِسحاق** :- (ا + سْ + حا + ق ) [ ع ، اس ، معر ، مذ ] (۱) د يو پيغمبر نوم حضرت اسحاق عليه السلام د حضرت ابراهيم عليه السلام زوے وو ۔ (۲) د مسلمانانو يو نوم ۔

**اِسحاق زي** :-(ا +سْ + حا + ق + زِي) [ پ ، اس ، مر ، مذ ] د پښتنو د يو خېل نوم۔د اسحاق اولاد ۔

**اِسحاق زے** :- (ا + سْ + حا + قْ + زَے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا، ج: اسحاق زي ] د اسحاق زي خېل يو سړے۔

**اَسد** :- (اَ + سَ + دْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اسدان ] (۱) زمرے ، ازمرے ، امزرے ، منزرے ، مزرے (۲) د اسمان په دولسو برجونو کښې د يو برج نوم ۔ (۳) بهادر ، ځوانمرد (۴) په شمسي حساب کښې د يوې مياشتې نوم دے۔دا نومونه د نمر د برجونو په حساب دي۔

**اَسدالله** :- (اَ + سَ + دُ + الله) [ ع ، اس ، معر ، مذ ] لُغ : د خداے پاک زمرے ، اص : د حضرت علي رضي الله تعالىٰ عنه لقب۔(۲) د اردو او فارسۍ مشهور شاعر اسدالله خان غالب۔(۳) د مسلمانانو يو عام نوم ۔

**اَسرار** :- (اَ + س + را+ ر) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : سر) رازونه ، پټې خبرې ، اسرار (عا )

**اِسراف** :- (ا + سْ + را + ف ) [ ع ، اس ، مذ ] (۱) د ضرورت نه زيات خرڅ کول ، بې ځايه خرڅ کول ، فضول خرڅي ، لُولنګر توب ۔ (۲) لاس دومره ازاد چلول چې روستو په کښې تنګسيا ورته راځي او په خپله موتازه شي

**اِسرافيل** :- (ا + س+ را + فِيْ + ل) [ ع ، اس ، معر ، مذ ، وا] د خداے پاک د مقربو فرښتو نه د يوې فرښتې نوم ۔چې د قيامت په ورځ به اخري ځل شپېلۍ غږوي۔يا لکه : " چې اسرافيل شپېلۍ پُو کا تحت الثرىٰ وته به هله ورسېږي " (اخوند قاسم)

**اَس راس** :- (اَ + سْ + را + س) [ پ (وز) ص ] لر بر ، اخوا ډېخوا ، انګڼ پيچه ، (سو) دلته اورته ، آلې دورې ، دولې دُورې، دلې دُورې ، الته دلته۔

**اِسرائيل** :- (ا + سْ + را + يْ + ل ) [ ع ،اسر + بنده ، ايل : الله ، خداے اس ،معر ، مذ ، وا ] (۱) د حضرت يعقوب عليه السلام نوم ۔ (۲) د يهوديانو د ملک نوم چې په فلسطين کښې ئې د عربو نه په زور قبضه پرې کړې ده۔

**بني ـــــ** :- (اص ) د حضرت يعقوب عليه السلام اولاد ۔

**اَسرے** :- (اَ + سْ + رْ + يَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] د ګيدړ په شان يو ځنګلي ځناور دے۔

**اَسره** :- (اَ +سْ + ره ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اسرې ] و ــ اسره۔

**ــــ لرل** :- (اص ) طمع لرل ، اُمېد لرل ، هيله لرل۔

**ــــ ورکول** :- (اص ) (۱) اُمېد ورکول ، طمع ورکول ، لالچ ورکول ، ډاډ ورکول (۲) تکيه ورکول ۔

**ــــ ورکېدل** :- (اص ) (۱) اُمېد ورکېدل ، طمع ورکېدل ، ډاډ ورکېدل (۲) تکيه ورکېدل۔

**بر ــــ پېښېدل** :- (اف) اص : د څُور ، لوټ يا وېريا شي په لاس راتلل

**په ــــ ساتل** :- اص ، په اُمېد ساتل ، په طمع ساتل ، په هېله ساتل۔

**په ــــ کول** :- اص ، په اُمېد کول ، په طمعه کول ، هيله ورکول۔

**اَسره من** :-(اَ + سْ + ره + مَ + نْ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا، ج (مؤ ، وا: اسره منه ، ج : اسره منې ] اسره لرونکے ، هيله لرونکے ،هيله من، اُمېدوار ، اُمېد لرونکے ، طمع لرونکے ، لکه : " د ديدن دې اسره من يم "

**اَسرهت** :- (اَ + سْ + رَ + هَ + تْ ) [ اف : پ (قاموس) ، ع : استراحت ، اس ، مذ ] ارام ، اسائش ، دمه ، راحت ،

**ــــ کول** :- (اص ) ارام کول ، دمه کول ، ويسا کېدل ،

**په ــــ کېدل** :- (اف ) اص ۔په ارام کېدل ، دمه خوړل ، ويسا کېدل عېش عشرت ته رسېدل ، ښهٔ ژوندون موندل۔

**اَسسټنټ** :- (اَ + س + سْ + ټَ + نْ + ټْ ) [ انګ ، ص ، مذ ، وا، ج: اسسټنټان ، (مؤ ، وا: اسسټنه ، ج : اسسټنټې ) ] نـائب ، اشتين ، مددګار ، شټنټ ، لکه : " دے زما اسسټنټ دے "۔

**اسسټنټ کمشنر** :- (اَسسټنټ + کَ + مِ + شْ + نَ + ر) [ انګ ، اس ، ص مذ ، وا ، ج : اسسټنټ کمشنران ] د ډپټي کمشنر نائب ، چوټا صاحب اے سي، لکه : " هغه د اسسټنټ کمشنر سره بابو دے "۔

**اُسطرلاب** :- (اُ+سْ + طُ + رُ + لا + ب ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، انګ : ASTROLABE ] يوه اله چې پخوا زمانه کښې د ستورو او سيارو د اوچتوالي د اندازې لګولو دپاره استعمالېده ، اُسترلاب۔

**اَسفل** :- (اَ+ سْ + فَ + لْ ) [ ع ، ص ] کمينه ، ذليل ، پرېوتے ، ادنیٰ ۔

پـــه اعلیٰ په اسفل واړه
راښکاره ئې هر اشياء کړه خوشحال

**اَسفلُ السافلين**:- (اَسفلُ + س + سا + ف + لي + ن) [ ع ، اس ، ص ] د ټولو نه لاندې د ښکته طبقې نوم ۔ ډېر خراب او ذليل ځاے ، پرېوتے ځاے ، لاندې غار ، لاندې درجه ، د لاندې نه لاندې ، د ټولو نه لاندې۔

**اِسقاط** :- (ا +سْ + قا + ط) [ع ،اس ،مذ ،وا، ج : اسقاطونه ] لُغ :غورځول، اچول،غورځېدل۔اص :(۱) زيان ، حمل غورځول زيان کېدل ،سپيازېدل ، د وخت نه وړاندې د مړ بچي پيدا کېدل (۲) سخات ، سکوت ، هغه پيسې ټکې چې وارثان ئې په مړي پسې ويشي۔د مړي خېرات۔

**اَسک** :- (اَ + س + کْ ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ ، وا،ج :اسکونه](۱) يسک، خسنړے ،پچه،ايسک (۲) هسک ،لوړ ، اوچت ، پورته۔

زۀ لاڅـۀ چې په ازل د برخو وېش ؤ
په غمونو باندې اَسک د آدم وُخوت علي خان

**ـــــ اَچول** :- (اص) یسک اچول ، خسنې اچول ، پچه اچول.

**ـــــ اَخستل** :- (اص) خسنې اخستل ، پچه اوچتول. ، ایسک رایستل

**ـــــ ختل** :- (اص) ایسک ختل ، خسنې وتل ، پچه رسېدل ،

**اَسکري** :- (اَ + سْ + کَ + رِ + يْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، ج ] یو قسم قندهاري انګور چې د سپین مویځ (وسکې) په شان وړې دانې لري.

**اَسکلان** :- (اَ +سْ + کَ + لا + نْ) [ پ ، یو : عسکلان ، اس ، مذ ، وا ] په افغانستان کښې د یو ځاے نوم ، ددې ځاے خربوزې مشهورې دي دلته لوے لوے عالمان تېر شوي دي.

**اَسکه غاړه** :- (اَ +سْ + که +غا + ړه ) [ پ ، اس ،مر ،ص ،مؤ ] لُغ : هسکه غاړه ، بنائسته غاړه ، لکه : "ګوره اسکه غاړه ئې څومره خوند کوي" .(۲) ناز ، غرور ، کبر ، لوئي ، د قرض پور نه بې فکره ، بې پروا ، ازاد.

**اَسکېدل** :- (اَ +س+کې+رَ+ل ) [ اف،پ (قاموس) مص مت ] خواره ول ، کمزوره کول . بې خونده کول ، زېل ، زبونول ، بې دمه کول . ما: واسکېرۀ ، حا : اسکېري ، ا: اوُبه اسکېري ، امر : واسکېره

**اَسکېړلے** :- (اَ+س+ کې + رَ + لَے ) [ فا: پ (قاموس) مف ، مذ، وا، ج: اسکېرلي ] کمزورے ، خوار ، زېلے ، زبون ، بې خونده ، بې دمه

**اَسکېرنه** :- (اَ + سْ + کې + رَ + نه) [ اف : پ (قاموس) حمص ] (۱) کمزورونه ، خوارونه ، ځپونه ، زبونونه.(۲) سو ، ګمان کونه ، انګېرنه.

**اَسکېرونکے** :- (اَ + سْ + کې + رُو + نْ + کے ) [ اف : پ (قاموس) اس ،فا ع ، مذ ، وا ،ج : اسکېرُونکي ] خواروونکے ، کمزورے کوونکے ، زبونوونکے ، بې خونده کوونکے.

**اُسکېزنه** :- (اُ + سْ +کې + ز +نه ) [ اف : پ (قاموس) اس ،مؤ ، وا، ج: اسکېزنې ] د دروازې د اړم اوړد لرګے ، وُول.

**اَسکېلوے** :- (اَ + اس + کې + ل + وَے ) [اف: پ (قاموس) اس ،مذ] رو رو فریاد ، زېرګي ، زوېرګي ، ځګوېري.

**اَسګوړے** :- (اَ + سْ + ګُو + ړَے ) [پ ، اس ، تصغ ، مذ ، وا ، ج: اسګوړي ] (۱) د اس وړوکے بچے ، بیانه. لکه : " اسګوړے لتې وهي " (۲) د ماشومانو د لوبو د پاره د لرګي نه جوړ اس.

**اَسګېدل** :- (اَ + سْ + ګې + رَ + ل ) [ پ (ظفر) مص مت ] د چا خبرو ته پټ غوږ نیول. اوډر نیول (ګن) غوږ سکارل.

**اَسګېرنه** :- (اَ + سْ + ګې + رَ + نه ) [ پ (ظفر) حمص ] د چا خبرو ته پټ غوږ نیونه ، اودر نیونه ، غوږ سکارنه (مو)

**اِسلام** :- (ا + سْ + لا + مْ ) [ ع ، اس ، مذ ] لُغ : د خداے پاک حکم ته غاړه کښېښول یا سر ټیټول. اص : د مسلمانانو دین.

**ـــــ راوړل** :- (اص) مسلمانېدل ، اسلام قبلول ، د بل مذهب نه اسلام ته را اوړېدل

**د ـــــ ارکان** :- (اص) (۱) د اسلام متې یا ستنې (۲) هغه اصول چې په هغو باندې د اسلام اډانه ولاړه ده. د اسلام پنځه ارکان. کلمه توحید ، نمونځ ، روژه ، زکوٰة او حج دي.

د اسلام ارکان احکام حلال حرام شته خوشحال

**د ـــــ امامان** :- (اص) د اسلام پېشوایان ، هادیان یا رهبران.

د اسـلام د امـامانو پــه لار دړومه
و مقصود ته روبرون له مذهب نشته الپوري

**اِسلام اباد** :- (اسلام + آ + با + د ) [ اس ، معر ، مذ ] (۱) د پاکستان دارالحکومت ، دا ښاریه د راولپنډۍ سره نژدې نوې اباده کړې شوې ده .(۲) د کشمیر یوه ورکوټې ښاریه چې هندوان ورته اننت ناګ وائي. او مسلمانان ئې اسلام اباد بولي.

**اسلام بول**:- (اسلام + بو + ل ) [اس ، معر ، مذ ، وا] وــ استنبول

**اِسلامي** :- (اِ+ سْ + لا + مِيْ ) [ ع ، اس ، ص ] اسلام سره تعلق لرونکے . د اسلام.

**ـــــ قانون** :- (اص) د شرعي قانون ، د قرآن قانون ، د الله تعالیٰ او رسول قانون ، د خداے تعالیٰ د رسول لار ، هغه قانون چې د اسلامي تعلیماتو په رڼا کښې جوړ شوے وي.

**ـــــ کال** :- (اص) قمري کال چې د هجري سن په نوم یادېږي . دا کال د میاشتې (سپوږمۍ) په حساب وي.

**ـــــ میاشتې** :- (اص) د اسلامي کال دولس میاشتې ، چې نومونه ئې دادي :- محرم ، صفر ، ربیع الاول ، ربیع الثاني ، جمادي الاول ، جمادي الثاني ، رجب ، شعبان ، رمضان ، شوال ، ذي القعده ، ذي الحجه.

**اِسلامیه کالج** :- (اِ+ سْ + لا + مِيْ + یَه +کا + لِ + جْ ) [ انګ ،اس،معر ، مذ ، وا ] (۱) د پېښور یونیورسټۍ یو مشهور کالج چې بنیاد ئې سر صاحبزاده عبدالقیوم مرحوم په ۱۹۱۳ء کښې ایښے ؤ.(۲) د مسلمانانو کالج چې د دینیاتو درس هم په کښې وي. نن پرون د پاکستان په ډېرو ښارونو کښې ددې نوم کالجونه شته.

**اَسلحه** :- (اَ+سْ + لَ + حَه) [ ع ، اس ، مؤ ، وا، ج : اسلحې ] وسله ، برګ ، د جنګ سامان.

**اَسلحه بند** :- (اسلحه + بَنْ + دْ) [فا تر ، اس ، ص ، مذ ، وا] وسله بند ، چې وسله ئې تړلې وي. چې وسله ورسره وي. چې په وسلې پُور وي. مسلح .

**اَسلحه خانه** :- (اسلحه +خا + نه ) [ فا ، اس ، مؤ ، وا، ج : اسلحه خانې] د وسلې ځاے ، کوت ، هغه ځاے چې وسله په کښې کښېښودلے شي.

**اَسلحه دار** :-(اسلحه [ دا + رُ ) [ فا ، اس ، فا ع ، مذ ،وا ، ج : اسلحه داران ،( مو ، وا ، اسلحه داره ، ج : اسلحه دارې ) ] وسله دار ، وسله لرونکے ، هغه څوک چې وسله ورسره وي. وسله بند .

**اَسلحه سازي** :- (اسلحه + سا+ زِيْ ) [ فا ، ف ، مؤ ، وا ، ج : اسلحه سازۍ ] وسله سازي،د وسیلې جوړول ،د وسلې رغول یا تیارول ، د وسلې سازول.

**اَسلم** :- (اَ+ سْ + لَ + مْ ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ] لُغ : چې ډېر محفوظ وي . چې زیات په امن وي. اص : د مسلمانانو یو نوم .

**اُسلوب** :- (اُ + سْ + لُو + بْ )[ ع ،اس ، مذ ] طریقه ، طرز ، طور ، ترتیب ، چلن ، لار .

عشق دے دا چې معشوقه شوه و عاشق ته
ښــۀ رُخسار د هـرويـانو پــه اسـلـوب رحمٰن بابا

**اِسم** :- (اِ+س+م+یا ا + سَ + مْ ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اسمونه ] (۱) نوم ، نامه (۲) جادو ، سحر ، (۳) هغه کلمه چې هغه په خپله معنیٰ په خپله دلالت کوي . او د څۀ زمانې پابند نۀ وي . لکه : د چاسړي، ځاے یا څیز نوم.

ابـتداء کـوم پــــه اسـم د مـولـی
چې په حکم کښې ئې دي ارض و سماء علي خان
نور چې اِسم ئې خوانده کړو
نرۍ ستن ئې شهزاده کړو رشید

**ـــــ آله** :- (اص) هغه اسم چې د اوازر معنې ورکوي. لکه : چاقو ، توره ، ټوپک او توپه او داسې نور.

**ـــــ اشاره** :- (اص) هغه کلمه چې د اشارې د پاره استعمالېږي . لکه : دا هغه او داسې نور .

**ـــــ اَعظم** :- (اص) د الله پاک په نومونو کښې یو لوے نوم.

ـــــ **تصغير** :- (اص) هغه اسم چې د چا فرد يا څيز وركوټوالے ترې ځرګندېږي .لكه : د چرګ نه چرګوړے ، د دېګ نه دېګچے او داسې نور۔

ـــــ **جامد** :- (اص) هغه اسم چې نۀ د څۀ كلمې نه وتے وي او نۀ ورنه څۀ كلمه وځي۔لكه خر ، اس ، او داسې نور۔

ـــــ **جلالي** :- (اص) د خداے پاک هغه نوم چې د جلال شان ئې ترې ظاهر وي۔لكه جبار ، قهار۔

ـــــ **جمالي** :- (اص) د خداے پاک هغه نوم چې جمالي صفات ئې ترې ظاهره وي۔لكه رحمان ، رحيم او داسې نور۔

ـــــ **جمع** :- (اص) هغه اسم چې وي مفرد (يواځې) ولې معنې د ډېر وركوي۔ لكه :- لښكر ، ټولے او داسې نور۔

ـــــ **جنس** :- (اص) هغه اسم چې د هر يو څيز د نوم دپاره استعمالېږي۔لكه : ''بنځه ، اس ، بوټے او داسې نور۔'' (په حواله د عربي)

ـــــ **حاليه** :- (اص) دا هغه اسم دے چې د فعل حالت ترې ظاهرېږي۔لكه : ''په خندا خندا كښې ئې ووے ''۔په ستر ګو ستر ګو كښې ''

ـــــ **ذات** :- (اص) (۱) الله ، كنايةً هغه نوم چې د هغه په ذات دلالت كوي (۲) هغه اسم دے چې د هغه په وجه د څۀ څيز حقيقت د نورو نه جدا ځرګند شي

ـــــ **زمان** :- (اص) هغه اسم دے چې وخت ترې ظاهرېږي۔لكه :''غرمه ، ژمے او داسې نور ''

ـــــ **صفت** :- (اص) هغه اسم دے چې ترې نه د څۀ څيز حالت ياكېفيت ځرګندېږي۔لكه '' خوږ ، كوږ او داسې نور ''۔

ـــــ **صوت** :- (اص) هغه اسم دے چې د څۀ قسم اواز ، معنې په كښې بربښي۔لكه كړنګ ، ټک ټک ، اخ توخ ، شرنګ او داسې نور۔

ـــــ **ضمير** :- (اص) هغه ټكي چې د اسم په ځاے استعمالېږي۔لكه:''زۀ ، تۀ ، هغه او داسې نور ''۔

ـــــ **ظرف** :- (اص) هغه اسم دے چې د ځاے معنې په كښې ځرګندېږي۔ لكه :لوښے ، كور، جُمات او داسې نور۔

ـــــ **عدد** :- (اص) هغه اسم چې شمېره ترې ظاهرېږي۔لكه :'' لس ، شل ، دېرش او داسې نور۔

ـــــ **فاعل** :- (اص) هغه اسم دے چې د كار كوونكي پته ترې لګي۔لكه ليكونكے ، ښونكے ، خوړونكے او داسې نور۔

ـــــ **معرفه** :- (اص) هغه اسم چې د خاص څيز يا فرد نوم ترې ظاهرېږي۔لكه : ''احمد ، كوهاټ او داسې نور۔

ـــــ **مفعول**:- (اص) اسم دے چې هغه څيز يا فرد ترې ظاهرېږي په چا چې كار شوے وي۔لكه : '' وژلے شوے ، ټكېدلے شوے او داسې نور ''۔

ـــــ **مكبر** :-(اص) هغه اسم چې د اصلي حالت په ځاے لوے والے ترې ظاهرېږي۔ يا مبالغه وي په كښې۔لكه '' عالم نه علامه ، مرغۍ نه مارغۀ او داسې نور ''۔

ـــــ **نكره** :- (اص) هغه اسم دے چې د خپل جنس د هر يو څيز دپاره استعمالېدے شي۔لكه ''ټوپۍ ، كوټ ، ثُوره او داسې نور''

**اَسمار** :- (اَ+ س + ما+ ر) [اف : پ ، اس ، معر ، مذ ، وا] د كونړ سره نژدې د افغانستان د يوې علاقې نوم دے۔

**اَسمارے** :- (اَ + س+مَا +رَے) [اف ، پ ، اس ، فا ع، مذ ، وا، ج : اسماري، (مؤ ، وا: اسمارۍ) ] (۱) د اسمار سړے ، د اسمار اوسېدونكے (۲) د ښځو نومونه هم وي۔

**اِسماعيل** :- (اِ+ سْ + ما + ع + يْ + ل) [ع ، اس ، معر، مذ، وا] (۱) د يو پېغمبر نوم چې د حضرت ابراهيم عليه السلام زوے ؤ۔دۀ ته اسماعيل ذبيح الله هم وائي۔(۲) د مسلمانانو يو نوم۔

**اِسماعيل شهيد** :- (اسماعيل [ شَ + ه + يْ + دْ ) [ اس ، معر، مذ، وا] دا مشهور او غازي د حضرت شاه ولي الله نمسے ؤ۔د سيد احمد شهيد بريلوي سره د سكانو خلاف په جنګ كښې شهيد شو۔ مزار ئې په بالاكوټ كښې دے۔

**اِسماعيله** :- (اِ+ سْ + ما + ع + يْ + له) [پ ، اس ، معر ، مؤ ] اسمپله سمبله ، د مردان ضلعې د صوابۍ په تحصيل كښې يو كلے۔

**اِسماعيليه** :- (اِ+ سْ + ما + ع+ يْ + لِيْ + يَه) [ع ، اس ، معر ، مؤ ] (۱) د مسلمانانو يوه فرقه۔ددې فرقې مشر ته اغا خان وائي۔ (۲) نهر سويز سره نژدې د يو ښار نوم۔

**اِسماعيلي** :- (اِ+ سْ + ما+ ع + يْ + لِ + يْ) [ع، اص ، ص ، مذ ، وا ، ج: اسماعيليان] د اسماعيلي فرقې يو غړے۔

**اَسمان** :- (اَ + س + ما + ن) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : اسمانونه] (و ـــــ آسمان) (ددې سره تعلق لرونكي نور ټكي د اسمان په پټۍ كښې وګورئ)

**اَسنا** :-(اَ + سْ + نا) [اف ، پ (قاموس) ص ، مذ] فائده ، ښېګړه ، نفع ، بهتري

ـــــ **كول** :- (اف) مص مت ، فائده كول ، ښېګړه كول ، نفع كول

ـــــ **كېدل** :- (اف) مص لا ، فائده كېدل ، ښېګړه كېدل ، نفع كېدل بهتري كېدل۔

**اَسنړل** :- (اَ + سَنْ + ړَ + لْ) [پ (سو) مص مت] د برستنو ، تولايانو ګنډل يا پېرل ما : واسنۀ ، حا : اسنې ، ا : وُبه اسنې ، امر: واسنه

**اَسو** :- (اَ + سُوْ) [پ ، ه ، اسوج ، اس ، مذ] د بكرمي يا فصلي كال شپږمه مياشت لكه :'' اسو ودې سُوو''۔

**اَسود** :- (اَ + سْ + وَ + دْ) [ع ، ص ، مذ ، وا] (۱) په رنګ تور ، حبشي زنګي (۲) يو مبارک كاڼے دے چې ''حجر اسود'' ورته وائي۔په كعبه شريفه كښې په دېوال كښې لګېدلے دے حاجيان ئې د طواف په وخت ښكلوي۔

تۀ محيط هره څيزه له سفيد و لا سوده خوشحال

**اَسودګي** :- (اَ+ سُو + دْ + ګي) [فا ، ص ، مؤ ، وا] (و ـــــ اسودګي)

**اُسون** :- (اُ + سُو+ ن) [پ (ګن) اس ، مذ] جمامه ، جنواوه ، تارامېرا، لېونے ، ترخۀ شرشم ، لكه : '' اُسون مې وربېل ''۔

**اَسوئے** :- (اَ+سو+ئَے) [پ (وز) اس] (۱) تسلي، اطمينان (۲) ډكار ،ګرېزائے ، اړدمئے ، اړدمئے۔

**اَسونے** :- (اَ + سو + نَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، ج: اسوني] د اوسپنې ځټكۍ ، مېخكوب۔

**اَسوېلاند** :- (اَ+ سْ + وي + لا+ نْ + دْ) [اف : پ (قاموس) اس ،ص ،مذ ،وا (مؤ ، وا: اسوېلانده ، ج : اسوېلاندې) ] سولند ، سولاتد ارواوړے ، اري وژے ، وږ ستر ګے۔

**اَسوېلاند توب** :- (اَسوېلاند + تو + بْ) [اف : پ (قاموس) ص] حرص ، لالچ ، اروا وړتوب۔وږ ستر ګوالے ، لوړتوب۔

**اَسوېلل** :- (اَ+ سْ + وي + لَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص ، مت] فرياد كول ،آه و افسوس كول،اوسېلل ،زوېركي ايستل ، ما: واسوېلل ، حا: اسوېلي ، ا : وبه اسوېلي ، امر واسوېله۔

**اَسوېلے** :- (اَ+ سْ + وي + لَے) [پ ، اس ، مذ، وا ، ج : اسوېلي] (۱)سره اوږده ساه ، د تكليف يا ژړا په وخت كښې ساه راكښل۔خوله وازول ، د افسوس كلمه۔(۲) د ډېرې يخنۍ په وجه د خولې نه چې كوم آواز خېژي۔ ګر ګوزے۔ (۳) (خل) اړدمے (اړدمے) چې د خوب نه پس يا

وراندې کولے شي. د خوب په حالت کښې خوله وازه ول. (۴) بد نظر (ب ، خ) لکه: "اسوېلے مه کوه".

رنګ ئې زېړ اسوېلے سوړ سترګې نونې
دا درې واړه د عـــشـاقو عــلامــه ده عبدالعظيم

زۀ اسوېلي کوم هغه قهرېږي
که زۀ سا ړۀ کړم هغه تودۀ کا حمزه بابا

د خوب په حالت کښې خوله وازه ول
اسـوېـلي مې د سينې په آسمان ځي آزاد ګل

**ـــــ کول** :- (اص) (۱) سړه ساه اخستل ، سلګۍ کول ، د يخنۍ په وجه ګړبېدل يا رپېدل. د يخنۍ د وجې سلبدل ، ګړګوزې وهل

**سوړ ـــــ کښل** :- (اف) مح. لُغ: سړه ساه راکښل ، اص: ډېر غمجنېدل زيات افسوس کول ، ارماني کېدل.

**سوے ـــــ** اص ، د زړۀ د سُوختہ راختلے اسوېلے. د ډېر غم په حالت کښې اسوېلے راکښل. د ګيلې ماني اسوېلے.

کله کله تانه ربه د وړو په شان ګېلې
کله تود ژوندے اُميد کل سوے اسوېلي غني خان

**اِسهال** :- (ا + سْ + ها + لْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] د دستونو بيماري ، په نس تلل ، نس خوږے ، چړېدل ، په پړپړو تلل (عا)

په ديدين به ئې له درده رغېدلۀ
جـدائـي کــله درد و د اسهال خوشحال

**اَسے** :- (اَ+ سې) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ] کرنګ شوے پرخه ، برنجک ، چنې ، سپينه پرخه ، سله.

**اَسي** :- (اَ+ سي) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اسيان ، (مؤ ، وا : اسۍ ، ج : اسيانې) ] بخيل ، منحوس ، سپېرۀ.

**ـــــ کول** :- (اف) د چا په غصه کښې راوستل او نارضه کول.

**ـــــ کېدل** :- (اَف) اص: غصه کېدل ، ناراضه کېدل.

**اَسي توب** :- (اَسي + تو + بْ) [پ (کوئټه) حمص] سپېرۀ توب ، بخيل تيا ، شومتوب ، بدمرغتوب.

**اَسيت** :- (اَ+سْ + يَ + تْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] شامت ، نحوست ، سپېرۀ توب.

**اَسير** :- (اَ+ سِيْ + رْ) [ع ، ص ، مذ ، ا ، ج : اسيران ، (مؤ ، وا: اسيره ، ج: اسيرې) ] (۱) قيدي ، بندي ، پابند (۲) کنايةً عاشق ته وئيلے شي.

يا ئې ډېر مست کا هوائې نوره شي
يائې ډېر خوار کا لکه اسير دې خوشحال

**اَسيسر** :- (اَ + سِيْ + سَ + رْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اسيسران] هغه مشر يا سپين روږے چې د سېشن جج په کچرۍ کښې د چا ملزم په سزا کښې رائې و رکوي.

**اَسيسري** :- (اَ+ سِيْ + سْ + رِ + يْ) [پ تر، ص] د اسيسر عهده يا منصب ، د اسيسر کار

**اَش** :- (اَ+ شْ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] (۱) و ـــ اش. (۲) د ماشومانو په اصطلاح کښې خر ته وائي. (۳) د حېرانېدلو او د ستايلو کلمه (۴) طمع ، اُمېد ، حيله (۵) (ب ، خ) د خرۀ د اټالو يا د وُدرولو دپاره وئيلے شي.

چې وفا غوارم له کښليو په دا اش يم خوشحال

**اِش** :- (ا + شْ) [پ (بنو) اس ، صو] (۱) د ماشومانو د څۀ ګنده څيز نه د منع کولو دپاره وئيلے شي. (۲) ماشومانو ته د اودس ماتي په وخت اِش اِش وائي. او ځينې خلق پش پش يا پشه پشه وائي.

**اَشا** :- (اَ + شا) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ ، وا ، ج : اشاوي] بلا يروونکے څيز ، بؤ ، نامعلومه بلا.

**اَشا وهل** :- (اص) بؤ وهل ، بلا وهل ، کنايةً خرابېدلو ته وائي.

**اَشار** :- (اَ + شا + رْ) [اف : پ (سيند) ص ، مذ] تريخ ، چې خوږ نۀ وي لکه : "دا شے اشار دے".

**اِشارت** :- (ا+شا+رَ +تْ) [ع : اس ، مذ ، وا ، ج : اشارتونه] (۱) اشاره ، اشوره. د بل طرف ته ګوته نيول ، د سترګې په وهلو سره بل پوهه کول. (۲) نصيحت ، سبق ، لار ښودنه ، (۳) په نمانځۀ کښې ګوته اوچتونه (۴) مفعولي کنځل. وائي چې هغه خو ايله اشارت غواړي.

هر چې لار په اشارت ښيئ و کور ته
حېراني ده د هغو زلمو زور ته علي خان

په روانه اوبو راشه عمر ګوره
ډېر دے هومره اشارت په دا دنيا رحمٰن بابا

ټپه: وړکوټے ور دې مخامخ دے
د غاړکۍ تعويذ دې کړي اشارتونه

**ـــــ کول** :- (اص) ګوته نيول ، لاس نيول ، سترګه وهل ، اشاره کول د چا چاته ور مخه کول.

**ـــــ کېدل** :- (اص) اشاره کېدل ، د چا ورمخه کېدل.

**په ـــــ** :- (اص) (۱) د اشارې په ذريعه، په معمولي وېنا ، په نار (۲) د چا په وېنا ، د چا په لمسه ، لکه : "د هغۀ په اشارت په ما دعوٰی کوي" (۳) په بهانې ، په ټګۍ.

هغې هم په اشارت او کړې خبرې
چې په ما باندې بلېږي اور د شرې نعمت الله
لکـه: "د هغـۀ پـه اشـارت پـه مـا دعـوٰی
کوي"

ټپه: په اشارت به دې راغواړم
په زلمو روښو به دې پړوکې پړوکې کړمه!

**د سترګو ـــــ** :- (اص) (۱) بهانه ، د سترګو اشاره ، د څۀ کار کول اجازت (۲) په سترګو خبرې کول.

کـه تـۀ څـۀ خواشـارت اوکـړې د سـترګو
د خوشـحال خټـک بـه اووينــې شـتاب

**د سر په ـــــ خبرې کول** :- (اص) غرور کول ، کبر کول ، لوئي کول

**اَشارتوب** :- (ا + شا + رْ + تو + بْ) [اف : پ (سيند) حمص] تريخوالے اشارتيا

**اَشارتيا** :- (اَ+ شا + رْ + ت + يا) [اف : پ (سيند) ص، وا ، ج: اشارتياوے] (۱) تريخوالَے (۲) کلکوالے ، سختي. لکه : "فلانے راسره اشارتيا کوي".

**اِشاره** :- (ا + شات + ره) [ع ، اس ، مؤ ، وا ، ج: اشارې] و ـ اشارت

**ـــــ ورکول** :- (اص) (۱) چاته د اشارې په ذريعه خبر ورکول ، لارښودل ، (۲) څوک په څۀ خبره پوهه کول ، هېره خبره وريادول. (۳) سترګه وهل.

**اَشاره والے** :- (اَ+ شا + ر + وا + لے) [اف : پ (سيند) ص] و ـ اشارتيا

**اَشاړي** :- (اَ + شا + ړ + يْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د يوې غرئيزې ونې مېوه. (۲) ترخې خرمانې ، تروې مندتې ، ځنګلي مندتې (۳) په باجوړ کښې د يو کلي نوم.

**اِشاعت** :- (ا + شا + عَ + تْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اشاعتونه] لُغ: خورول ، اص (۱) چاپ کول ، شائع کول (۲) د څۀ څيز د مشهورۍ دپاره پروپېګنډه کول.

**اَشایل** :- (اُ +شا+ یَلْ) [پ (وز) مص مت] ښائل ،ښودل، شایل ، شال.

**اشباه** :- (اِ+ شْ +با +ه) [ع ، اس] شبه ، شک .

د زاهد په کار کښې څو رنګ اشتباه وي

دا وبــاش پــه کار کښې هېڅ نشته اشباه خوشحال

**اَشبیلیه** :- (اَ+ شْ+ بي +لِ +یه) [ع ، اس ، معر ، مؤ ، وا] سپین یا هسپانیه یو مشهور ښار.چې د مسلمانانو د حکومت په دور کښې ډېر ښکلے او ودان ؤ.نن پرون ورته سیول وائي.

**اَشپیر** :- (اَ+ ش +پِيْ+ رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) غوغا، شور ، شور زوږ ، ویر ، ټنډور ، غوریځ ، ژوژ (۲) بې سرېتوبه ډله یا ټولنه.

**اِشتباه** :-(اِ+شْ+ت+با+ه) [ع ، اس،ص] شک ، شُبه ، ګمان خطائي ، غلطي ، د دوؤ څیزونو په مېنځ کښې شک ، دُوجاله کېدل.

تګ د بنارس وے ما وې باز ئې تۀ تپوس وے

زر کــلـه دے مــس وے غلط شوم له اشتباه علي خان

**اُشتبدله** :- (اُ+ شَ+ تې+ دَ+ له) [پ (سو) ف ، مؤ ] (۱) پړته شوه.شړته شوه ، شړوته شوه ، دا د کوړکۍ د شړتبدلو اواز ته وائي. (۲) دا ټکے په کنځلو کښې هم استعمالېږي.(عا )

**اَشتر** :- (اَ+ شْ+ تَ+ رْ) [اف : په (قاموس) اس ، مذ ، وا] د اس د تانګ تسمه

**اِشتراک** :-(اِ+ شْ+ ت+ را +ک) [ع ، اس ، مذ ، وا ] شرکت ، حصه داري ، بائیوالي ، ګډون.لکه : ''هغوي په کار کښې اشتراک کړے دے''.

**اِشتراکیت** :- (اِ+ شْ+ ت+ را+ کي+ یَتْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] لُغ : شریکېدل ، ګډون.اص : سوشلزم ، یوه نظریه ده چې د ملک ټوله ګټه وټه په یو ځاے کړي او د هغه ملک هر کس د خپل کار کسب په رُو سره په کښې حصه دار ګڼلے شي.په پښتو کښې ددې ټکي معنٰی شاملات کولے شي.

**اِشتعال** :- (اِ+ شْ ت+ عا+ ل) [ع ، اس ، مذ ، وا] لُغ : لمبه کېدل شُغله اوچتېدل ، اص : جوش ورکول ، غصه کول ، قهرول ، پارول د جذباتو رالړزول ، جنګ جګړې ته ګرمول.لکه : ''ماته اشتعال مه راکوه.''

**اَشتغ** :- (اَ+ ش+ تَ+ غْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] اوچ زرد آلو اوچې زیړې خُرماني ، شلیکے ، کښته .

**اِشتغال** :- (اِ+ شْ+ ت+ غا+ ل) [ع ، اس ، مذ ، وا] شغل ، مشغولا مشغولتیا ، بوختېدنه .

که ظاهر له نوره خلقه مشغولا کړم

زړۀ مې تل د بار له غمه استغال کا عبدالقادر خان

**اَشتوکه** :- (اَ+ شْ+ تو+ کَه) [اف : پ (قاموس) فا : آشتي ، اس ، مؤ وا ، ج : اشتوکې] امن، صلح ، روغه جوړه ، اشتي ، خبرخبریت اشنائي ، مینه

**اِشتها** :- (اِ+ شْ+ ت+ ها) [ع ، ص ، مؤ ، وا] (۱) خواهش ، (۲) لوږه ،لوژه ، ډوډۍ ته خوا کېدل ، خوراک ته زړۀ کېدل ، خوړو ته مینه کېدل.

که د غوا د بزو شلومبې څښې زیان ئې نشته

اشــتــهــا د ســرې زیـاتـــه کــا پــه خـوړ خوشحال

**ــــــ بندول** :- (اص) لوږه بندول ، د خوړو خواهش ورکول.

**ــــــ بندېدل** :- (اص) خواهش نۀ کېدل، لوږه نۀ پاتې کېدل،ځان موړ محسوس کول، د خوړو خواهش ورکېدل، خوراک ته زړۀ نۀ کېدل.

**ــــــ راتلل** :- (اص) خواهش کېدل ،زړۀ غوښتل ، اشتها پیداکېدل ورے کېدل

تریخ ببېلتون مې له پیکه وساله خوښ شۀ

رنځور زړۀ ته مې نن دا اشتها راغـلـه علي خان

**ــــــ کېدل** :- (اص) وږي کېدل ، خواهش کېدل ، طبیعت کېدل ، خوراک ته زړۀ کېدل ، لوږه راتلل.

**ــــــ لرل** :- (اص) خواهش لرل ، لوږه محسوسول.وږي کېدل.

**اِشتهار** :- (اِ+ ش+ ت+ ها+ رْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اشتهارونه] لُغ : مشهوري ، اعلان ، خورونه ، ډنډوره ، نغاره ، اطلاع . اص :- هغه چاپ شوے کاغذ چې د هغه په ذریعه د یو څیز مشهوري کېږي لکه : '' په اخبار کښې اشتهار ورکړه ''.

**ــــــ ورکول** :- (اص) لُغ : مشهوري کول ، اعلان کول ، خبره خورول اص : په اخبار کښې د یوې خبرې اعلان کول ، یوه خبره خورولو دپاره چاپ کول.

**اِشتهاري** :- (اِ+ ش+ ت+ ها+ رِ+ يْ) [پ ، اس ، ص] لُغ : اشتهار کښې ورکړے شوے. اص (۱) هغه ملزم چې روپوش وي.ا و د هغۀ د نیولو دپاره عام اعلان اوشي. (۲) پروبوتے ، سپک ، لکه:''اشتهاري دارو به څۀ کوي''

**اَشتي** :- (اَ+ شْ+ ت+ يْ) [فا : اشتي ، ص ، مؤ ، وا] امن ، صلح ، روغه جوړه.

**اِشتیاق** :- (اِ+ ش+ ت+ یا+ ق) [ع ، ص ، مذ ] شوق ، خواهش ، آرزو تمنا ، زړۀ غوښتنه .

زوړ شوم یو یار مې یک رنګ اونۀ لیدۀ

زړۀ مــې تــر اوســه پــه اشــتیاق دے خوشحال

**اِشتام** :- (اِ+ ش+ ټا+ مْ) [اهنګ : ستیمپ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اشټامونه ] استام ، دستاویز ، د معاهدې لیک ، د لیک . هغه کاغذ چې د حکومتد له خوا د معاهدې د لیک دپاره منظور شوے وي او په پیسو خرڅېږي.

**اَشجار** :- (اَ+ شْ+ جا+ ر) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : شجر] ونې ، بوټي.

د مرغونو د نواله موجه شوري

نۀ له باده شورېدنه د اشجار شي خوشحال

**اَشخار** :- (اَ+ ش+ خا+ ر) ] اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] شخار ، اشقار ، تورګاړ ، کهار ، شقار '' یو قسم کیمیاوي څیز دے چې د صابون په جوړولو کښې په کار راځي.او د جامو وینځلو دپاره استعمالېږي ''.

**نیستي په ــــــ نۀ ډېرېږي** :- (اف) مح.چې څوک حرص کوي او معمولي معمولي څیز جمع کوي او د بخیلۍ نه کار اخلي.نو بل ورته وائي چې ''نیستي په اشخار نۀ ډېرېږي''.

**اَشخورکه** :- (اَ+ شْ+ خ+ وَ+ رَ+ که) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اشخورکې] د ماشومانو یو خاص قسم واسکټ.

**اَشر** :- (اَ+ شَ+ رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اشرونه] هغه ټولنه چې په شریکه یو کار کوي.حشر ، بلندره ، (خ) بګړه (وز) بسکره ، (ګن مر) ټینګه (بنو) پګاړه (بنو) په اشر کښې نغدې نه ورکوي.ولې ښۀ ډوډۍ به خامخا ورکوي.

**ــــــ بابو** :-(اف) اص : د سرو ټولنه یا غونډه ، شور او زوږ ، غوربځ (وز) ژوژ.

**ــــــ بابوې** :- (اف) اس ، فا ، ع ، مذ ، وا ، ج : اشربانې.هغه سرے چې د اشر کار کوي.بلند ګرے (خ) بلند رائے (ب ، خ) اشر ګرندے ، اشر ګندے ، بلندره ګړے ، اشر کوونکے ، بسکر کوونکے ، بګاه یا بګاړه کوونکے ، د بل دپاره په ملاتړ کار کوونکے.

**ــــــ ګرندے** :- [پ (سو) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اشرګرندي] و ــ اشربانے

**ــــــ ګندے** :- (اس ، فا ع ، مذ ، وا، ج : اشرګنډي) و ــ اشربانے

**اَشرار** :- (اَ+ شْ+ را+ رْ) [ع ، اس ، ص ، مذ ، ج ، وا : شریر) (۱) شرارتیا ، شرارت کوونکي ، فسادیان ، شریان ، شریران ، ورانکاري (۲) د شرارت خبره ، شور شر و .

ما و خپلخانې د قام ته ووې چې زنهار
مرګ کشتن ئه بويه ئه ځۀ نور شرو اشرار خوشحال

**اَشراف** :- (اَ +شْ+را + ف) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج ، اشرافان ، (مؤ ، وا : اشرافه ، ج : اشرافې) ] شريف ، شريف سړے ، اشراپ ښک چلنده.
اورنګ زېب او شاهجان غوندې اشراف
صدقه شه تر منصور غوندې نداف رحمٰن بابا

**اَشراف الله** :- (اَ + ش + را + فُ+ لا+ ه) [ اس ، معر ، مذ ] د مسلمانانو يو نوم.

**اَشراف توب** :- (اَشراف + تو + ب) [ پ ، حمص ] شريف والے ، شريف توب ، ښۀ والے ، ښک چلند والے ، شريف وو له (وز) لکه : " په سړي کښې اشراف توب ګوره "

**اَشراف والے** :- (اشراف + وا + لے) [ پ ، ص ] (و ــــ اشراف توب)

**اِشراق** :- (اِ+ ش + را + ق) [ ع ، مص ، مذ ] (۱) د نمر ختل ، د نمر ختلو نه پس د سحر وخت ، د نمر څرېکه وهل ، د نمر ځيره وهل، د نمر تېغون.
(۲) په مراقبه کښې ناسته.

**د اشراق نفل يا نمونځ** :-(اص) د نمرخاتۀ نه پس نمونځ کول يا نفل کول.
چې د مئے و د مطرب په خوند خبر شۀ
فراموش کړۀ صوفي نفل د اشراق رحمٰن بابا

**اَشرپ** :- (اَ + ش+ رَ + پْ) [ پ ، اس معر (عا) مذ ] اشرف ، شريف ، د اشرپ خان په ځائې مختصر استعمالېږي. د سړي نوم.

**اَشرپ خان** :- (اشرپ + خا + نْ) [ پ ، اس ، معر ، مذ ] په پښتنو کښې يو عام نوم ، اشرف خان.

**اَشرپے** :- (اَ + شْ + رَ + پے) [ پ ، اس ، تصغير ، مذ ، وا] د اشرپ يا اشرف نه اشرپے جوړ شوے دے.

**اَشرپۍ** :- (اَ + شْ + رَ + پَ + يی) [ فا : اشرفي ، اس ، مؤ ] (۱) د سرو زرو يوه سکه ، اشرفۍ ، د سرو زرو مُهر. (۲) چې شاه اشرف پښتون باچا جاري کړې وه.

**اَشرف** :- (اَ+ شْ + رَ + فْ) [ ع ، ص ، مذ ] زيات شريف ، ډېر شريف ، ډېر بزرګ ، عالي نسب ، ښک. شاه اشرف.

**اَشرف المخلوقات** :- (اَشرف + لْ + مَ + خْ + لُو + قا+ت) [ع، اس ، ص] لُغ : د ټول مخلوق نه زيات ښۀ ، اص : بنيادم ، انسان.

**اَشرفۍ** :- (اَ + شْ + رَ + فی) [ فا ، اس ، مؤ ] و ــــ اشرپۍ.
څوړالس زره اشرفۍ سودا د پـاره
راله راکړې هغه درنګ بې اختياره ملا نعمت الله

**اَشرنشر** :- (اَشر + نَ + شَ + رْ) [ ع ، حشر نشر ، اس ، مذ ] (۱) حشر نشر ، د محشر ورځ ، قيامت ، (۲) شور او غوغا ، زوږ ، ژوړ ، غوبمنډ ، الغاؤ تلغاؤ (۳) فتنه ، آفت ، اپت (۴) ژړا ، غوريږ ، (۵) ټولنه يا غونډه بې ترتيبه خوربدل (۲) ځان ځانې.

**ــــ جوړول** :- (اص) شور زوږ جوړول ، شور فرياد کړول.

**ــــ جوړېدل** :- (اص) شور شغب يا الغاؤ تلغاؤ شروع کېدل ، ګړبړ کېدل.

**ــــ کېدل** :- (اص) و ــــ اشر نشر جوړېدل.

**ــــ کړول** :- (اص) الغاؤ تلغاؤ شروع کول ، د خلقو غوبل جوړول ، شور شغب او ګړبړ جوړول ، کچړی جوړول ، (سو)

**ــــ کړېدل** :- (اص) الغاؤ تلغاؤ شروع کېدل ، غوبل جوړېدل ، ګړبړ شروع کېدل ، کچړی جوړېدل.

**اَشري** :- (اَ+ شَ + رِ + يْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ] (۱) کورنے مست او شهوتي څناور ، خاص طور سره د خرۀ دپاره دا لفظ زيات استعمالېږي. لکه " اشري خر ". (۲) د اشريانو (بلندره ګرو) د ټولنې يو کس ، اشربانے.

**ــــ خر** :- (اص) هغه خر چې د ښۀ نسل زياتولو دپاره سرکاري خرڅ په تحصيل کښې ساتلے شوے وي. د تحصيل خر ، اسپتالي خر ، ساندۀ خر

**اَشرۍ** :- (اَ + ش+ رَ + ی) [ پ (سو) اس ، ص ، مؤ ، وا ] بد عمله ښځه کنجره ښځه ، لکه : " هغه څۀ اشرۍ ده ".

**اَشعار** :- (اَ + شْ + عا + رْ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : شعر ] شعرونه ، بېتونه ، د نظم کړی يا بندونه ،

**اِشغال** :- (اِ + شْ + غا + ل) [ ع ، ص ، مذ ، ج ، وا : شغل] شغل ، مصروفيت ، کار.
تــفکر د شاعرۍ لــړمون شين کا
د عليم دې په نصيب شي دا اشغال خوشحال

**اَشغالي** :- (اَ+ شْ + غا + لِيْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا] خزله ، غورځوونکے صفائي کوونکے. خاکروب ، شاخېل ، مُصلي.

**اَشفتګي** :- (اَ+ شُ +فْ+تَ+ ګ + يْ) [ فا ، ص ، مؤ ] و ــ آشفتګي

**اَشفته** :- (اَ + شُ + فْ + ته) [ فا ، ص ] بې ارامه ، بې قراره ، مصيبت زده ، بدحاله ، اوکه (وز ، ګن) پرېشان.

**ــــ حال** :- (اص) په مصيبت کښې ګېر ، پرېشانه ، وارخطا ، بدحاله

**ــــ خاطر** :- (اص) غمجن ، پرېشان حال ، ناقلاره ، وارخطا ، په دماغي تکليف کښې اخته ، سروهلے بروهلے ، فکرمند.

**اَشقيا** :- (اَ+ شْ + ق + يا) [ ع ، اس ، ص ، مذ ، ج ، وا: شقي ] بدبختان ، بدبخته ، بدقسمته.
چې خپل ګور لره زحمت وړي
هـغـه څـــوک دي اشـقــيا خوشحال

**اَشک** :- (اَ+ شْ + کْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ] اوښکې ، اوښې ، اوشکې ، ايشکې ، اُښکې.

**اَشکال** :- (اَ+ شْ + کا + ل) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : شکل ] شکلونه ، صورتونه.

**اِشکال** :- (اِ + شْ + کا + ل) [ ع ، ص ، مذ ، وا ، ج : اشکالونه ] ګرانه مشکل ، تکليف ، حېرانتيا.
کــــه د بنداؤ د زندان مشکل اسان شي
وار په وار به خداے آسان که کل اشکال
ستا دا نيسته هسته خولۀ هسې اشکال ده
چې بـــه نـۀ وي نور دا هسې اشکالونه خوشحال

**اَشکونے** :- (اَ+ شْ+کُو+نے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] سرشوکاري ، سرشوکانې ، سر شکوونے. د ماشومانو يوه لوبه ده. يو هلک يو کانړے لرې ارتاؤ کړي. بيا ټول هلکان ورپسې ورمنډه کړي. هر څوک چې هغه کانړے راواخلي نور هلکان د هغه غوړونه تاووي او وېښتۀ شوکوي او دا کوښښ کوي چې هغه کانړے ترې واخلي. هر يو هلک چې هغه کانړے بېرته ارتاوونکي ته راورسوي. دا د هغۀ شي. خرړونه ګيتې ، خرړولے ګيتې.

**ــــ کول** :- (اَف) اص : د سر شکوونې لوبه کول ، خرړوبه ګيتې کول

**اُشکه** :- (اُ+شْ + که) [ پ ، فا : اشک ، اس ، مؤ ، ج : اُشکې ] اوښکه اوشکه ، اوښه ، اُښکه.

**ــــ نۀ اچېدل** :- (اص) يوه اوښکه هم نۀ پېېدل ، يوه اوښکه نۀ راتلل يوه اوښکه نۀ څڅېدل ، د غم په حالت کښې ژړا نۀ کول.

**ــــ اُچول** :-(مح) لُغ : اوښکې وچول ، اوښکې پاکول ، اوښکې صفا کول. اص : د چا سره همدردي کول ، راضي کول ، خوشحالول.

څو اوچوم اښکې ستا له غمه په لستوني
ولـې تاړۀ نۀ شي د طوفان په اُوبو پُل حميد

ــــ **اچېدل** :- (مح) لغ: اوښکي وچېدل ،سترګو ته اوښکي نۀ راتلل، اوښکي بندېدل ، اوښکې نۀ پرېوتل - اص : دومره ژړل چې نورې اوښکې په سترګو کښې پاتې نۀ شي-دا په شاعرۍ کښې استعمالېږي.

ــــ **بيول** :- (اص) ژړل ، اوښکې تويول ، اوښکې راتلول ، اوښکې څڅول ، د چا ماتم کول.

ــــ **تلول** :- (مح) و ـــ اُشکې بيول.

ــــ **څڅول** :- (مح) (۱) و ـــ اُشکې بيول (۲) د مکر ژړا کول.

**اورتې ورتې** ــــ :- اص ، غټې غټې اوښکې ، ډېرې زياتې اوښکې ربې ربې اوښکې.

ورتــې ورتــې ســتا سارۀ سارۀ آهونه
ستا په درد و غم کښې زۀ هم دا لرم سامان خوشحال

**دأشکو اوبۀ** :- (اص) د اوښکو اوبۀ ، ډېرې زياتې اوښکې ، د اوښکو باران.

**اَشکې** :- (اَ + شْ + کې) [اف : پ (قاموس) اص] د شاباشي کلمه ، شاباش ، افرين ، اپرين.

**اَشلوک**:- (اَ ش+لو + کْ) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : اشلوکونه] شلوک شعر ،منظوم کلام،د ګيتا بيت ، لکه : "بامېر د ګيتا اشلوکونه وائي "

**اَشنائي** :- (اَ ش+ نا + ئي) [پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : اشنائي يا اشناياني] و ـــ اشنائي - (ددې سره تعلق لرونکې نورتکې د اشنائي په پټي کښې وګورئ)

جدائي له آشنايۍ نه پيدا کېږي
نا آشنا لره هيڅ غم د هجران نيشته رحمٰن بابا

**اَشنغر** :- (اَ+ شْ + نَ + غَ + رْ) [پ ، ه ، اشټ ، فا : هشت ، اتۀ ، ه: نګر :کلې : اتۀ کلي ، اس ، مذ ، وا] هشتنګر ، د پېښور په علاقه کښې د يوې ډېرې زرخيزې علاقې نوم.

که سوات که اشنغر که پېښور دے دا ملکونه
رجوع لري ودۀ ته قبض در درومي د هر ځاے خوشحال

**اُشنل** :- (اُ + شْ + نَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] ورۍ ريشل ، ورۍ بېلول ، ورۍ تومبيه کول-تار تار کول . د زوړ پشم ريشل او بيا ډنډ يا ډانډچ کول ، په ډغ وهل يا تُشپل.

**اَشو** :- (اَ+ شو) [پ (عا) ع : حاشيه ، اس ، مؤ] د عوامو په لهجه کښې د حاشيو نه حاشو جوړ شو-او بيا حاشو نه اشو شولو.

ځکــه زۀ کــوم اســره و مخ ته
آسانېږي مشکل متن په ځاشو حميد

ټپه: سر له کتابه راوچت کړه
ستا د کتاب له اشو ډېر زما خالونه!

**اَشوا** :- (اَ +شْ + وا) [اف : پ (قاموس) ص] بدنام ، رُسوا ، شرمېدلے

ــــ **کول** :- (اَف ، مص تر) بدناموِل ، شرمول ، رُسوا کول ، تهمت لګول ، تور پورې کول ، داغي کول.

ــــ **کېدل** :- (اَف) مص لا - بدنامېدل ، شرمېدل ، رسوا کېدل - تورپورې کېدل ، داغي کېدل.

**اَشواتوب** :- (اَشوا [تو + ب] [اف : پ (قاموس) حمص] بدنامي ، رسوائي ، شرمندګي.

**اَشواتيا** :- (اَشوا + ت + يا) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ اشواتوب

**اَشواره** :-(اَ+شْ+وا+رَه) [اف :پ (قاموس) اس ،مؤ ، وا ، ج : اشوارې] بې حيا ښځه ، شرمېدلې ښځه-لګهه (سو) قچره ، کنجره.

ــــ **کېدل** :- (اَف) مص تر ،د ښځې بې حياکېدل ، شرمېدل ، رسوا کېدل ، قچرېدل

**اَشواينه** :- (اَ+ شْ + وا + يَ + نه) [اف : پ (قاموس) حمص] (و ــــ اشواتوب)

**اَشوب** :- (اَ + شو + بْ) [فا ، اس ، مذ ، وا] (۱) اشوب ، شور ، ژوړ اَله ګُله ، مصيبت ، افت (۲) خوږ ، د سترګو خُوږ.

بـــوچه قهر په اشو شو
زر ولاړ په تلا توب شو صدر

**اَشورګ** :- (اَ + شُو + رَ + ګْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اشورګونه] (۱)شه رګ ، غټ رګ (۲) حرکت ، خوځېدل.

ــــ **خوزول** :- (اص) حرکت کول ، خوځېدل.

**اشورګ** :- (ا + شْ + وَ + رْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ايشورګ ، يو قسم دوائي ده چې د اُورۍ ، حلق او غاښونو د علاج دپاره استعمالېږي.

**اَشوراند** :- (اَ+ شْ + و + را + نْ + دْ) [پ (ګن) اس ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا : اشـورانده)] وران ، وران کـارے ، اکثـر د ماشـوم دپـاره اسـتعمالېږي . لکه "دا ډېر اشوراند هلک دے ".

**اَشوره** :-(اَ+ شُو + رَه) [پ (عا) ع : عاشوره ، اس ، مؤ ، وا] عاشوره د امامانو د مياشتې لسمه ورځ،د حسن حسين د مياشتې لسمه ورځ .

**اَشوبشائے** :-(اَ+شْ +وې+شا+ئې) [پ (ب ، خ) اس ،مذ،وا،ج: اشوبشي] شک، ګمان ، تشويش ، لکه : "لږ اشوبشائے مې وشو".

**اَشوبشن** :- (اَ+ شْ + وې + شَ + نْ) [پ (ب، خ) اس ، فا ع ، مذ، وا] تشويش کونکے ، شک کوونکے ، ګمان کوونکے.

**اَشه** :- (اَ+ شه) [اف : پ (قاموس) اس ، صو] خرې ، ارې ، هرې ، کرې ، د خره د شړلو آواز -لکه " اشه بابا اشه ملا عثمان غوندې مرېې لرې ".

ــــ **کول** :- (اَف) مص تر ، (خر) ارې کول ، خر شړل-خر کرې کول-خر ، خرې کول ، (خر) خرې کول ، خر ، هرې کول.

**اَشيا** :- (اَ+ شْ + يا) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : شيَی] (۱) څيزونه ، شايونه ، شايينه .(۲) (وا) (ب ، خ) بې ښې توښې ، بې کاره ، فضول ، لکه :"فلانے هسې اشيا دے " (۳) (مؤ) بؤ ، بلا لکه : " د اشيانه ځان ساته ".

نۀ به زر و تاته پرېږدي
نـۀ مالونه نه نۀ اشيا خوشحال

**اَښ** :- (اَ+ خ يا اَ + ش) [پ ، ص ، مذ] د حسرت او تعجب کلمه.

ــــ **کول** :- (اص) حسرت او تعجب کول.

**اَښوه** :- (اَ+ خْ + وه يا اَ + ش+ وه) [اف : پ (قاموس) ص ، مؤ] خوا ، طلب ، خواهش ، د زړۀ غوښتنه ، اشتهار.

**اَښويران** :- (اَ+ خْ + وِيْ را + نْ + يا اَ + شْ + وِيْ + را + ن) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ] وېنا ، خبرې اترې ، قيصې پيسې ، قيصې ميسې ، قيصې قطارې.

**اَښے**:- (اَ+ خَے يا اَ + شَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] دمه ، سوکه توب ، ساهيله ، ارام

ــــ **کول** :- (اَف) مص تر ، دمه کول ، سوکه کېدل ، ارام کول ، ساهلېدل ، سائيله کول.

**اُښے**:- (اُ + خے) [پ ، اس ، مذ ، وا،ج: اُښې] اوښے ، اوخشے ، د ښځې ورور-د خور خاوند

**اَصالت** :- (اَ+صا + لت) [ع ، اس ،مذ] اصل نسل ،حسب نسب ، جړه ، مونږ ، بنياد ، اصليت ، شرافت ، خاصيت ، نجابت.

چې اصلات لري چې ښۀ خلصلت لري
هغه به بخره له میانه یوسي

فضیلت د ښۀ نسب د اصالت دے
فضیلت دے د ښۀ حسن د ښۀ خال خوشحال

**اَصالتاً** :- (اَ+صا +لَ+ تاً) [ع ، اص] په خپله، ځاني ،بذات خود ، دا قانوني اصطلاح ده.سرے عدالت ته لا په خپله پیشبږي چې ورته اصالتاً وائي یا ددۀ په ځاے وکیل پیش شي چې وکالتاً ورته وائي

**اَصحاب** رضہ :- (اَ+صْ+ حا + ب) [ع ، اس ، مذ ، ج وا: صاحب ، جج: اصحابان] (۱) ملګري ، دوستان (۲) هغه کسان چې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم سره ئې ناسته پاسته کړې وي او ایمان ئې پرې راوړے وي.

تاۀ د صبر په خاوند دي علي خانه
تۀ اوس دست راکړه زمونږه اصحابه

په سرو زرو کښې کمے د قدر نشته
صحابان د پیغمبر واړه سرۀ زر دي خوشحال

**ــــ الفیل** :- (ع) اص ، لُغ : د هاتیانو خاوندان ، اص : د ابرهه حبشي لښکر چې هاتیان ورسره وو.او په مکه معظمه ئې حمله کړې وه

**ــــ الکهف** :- (ع) اص.لُغ : د غار خلق ، د غار ملګري ، اص : هغه کسان چې تعداد ئې درې ، پنځه ، اوۀ یا دغسې دے.د دقیانوس د خدایی د دعوې نه تنګ شول.او سره د سپي یو غار ته ننوتل.هلته اودۀ شول.یو څل راویښ شول.بیا اودۀ شول او تر قیامته به اودۀ وي.

**اَصحابي** :- (اَ+ ص+ حا + بِي) [ع ، اس ، ص ، مذ ، وا، ج : اصحابان] (۱) دوست ، ملګرے ، (۲) اص : د رسول کریم صلی الله علیه وسلم هغه ملګرے چې دوي ئې لیدلي وي.او ناسته پاسته ئې ورسره کړي وي.او ایمان ئې پرې راوړے وي.

**اَصرار** :- (ا + صْ+ را + رْ) [ع ، اس ، مذ ، وا، ج : اصرارونه] (۱) تکرار ، ضد .لکه : '' ما سره اصرار ولې کوې ''(۲) تاکید ، بیا بیا وینا ، په ټینګه وینا ، لکه : '' ډیر اصرار مې پرې وکړو''

**اَصطبل** :- (اَ+ ص ْ+ طَ+ بل) [ع ، اس ، مذ ، وا، ج : اصطبلونه] د اسونو طویله ، د اسونو د تړلو ځاے.په اصل کښې دا لفظ د یونان نه راغلے دے په پښتو کښې عام استعمالیږي.

**اَصطلاح** :- (ا + ص+ ط + لا+ حْ) [ع، اس ، مذ، وا ، ج : اصطلاګانې]هغه ټکے چې لغوي معنٰی ئې یوه وي.او اصطلاحي یا عام مفهوم ئې بل وي.

هر څوک خپله اصطلاح کا
چې د خپل مقصود ایضاح کا صدر خان

**اَصطلاحات** :- (ا+صْ+ ط+لا+ حا+ت) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : اصطلاح] د عربی په طریقه د اصطلاح جمع ، اصطلاح ګانې.

**اَصطلاحي** :- (ا+ صْ+ ط+ لا+ حِيْ) [ع ، اس ، ص] د اصطلاح سره تعلق لرونکے ، لکه : '' درې اصطلاحي معنې دادي.''

**اَصفهان** :- (اَ+ صْ+ فَ+ ها + نْ) [فا ، اس معر ، مذ] د ایران د یو مشهور ښار نوم .

**اَصفیا** :- (اَ+ صْ+ ف+یا) [ع ، اس ،مذ،ج ، وا : صفي] پاک خلق ښک خلق ، بزرګان.

د باطن خبرې ورکبرې
په صحبت د اصفیا خوشحال

**اَصل** :- (اَ+ صَلْ) [ع ، اس ، مذ، وا ، ج : اصلونه] (۱) بنیاد ، جرړه، بیخ ، وبخ ، مُونډ (۲) اصلیت ، حقیقت .(۳) نسب ، ذات ، حسب نسب (۴) سُوچه ، خالص ، اصلي (۵) سر ، د سرمایې اصل ، پنګه ، لکه : '' په تجارت کښې مې خپل اصل هم بائیلود ، ګټه خو ئې لا پریږده ''.

که په اسل دواړه یو دي په دا څۀ شو
په قیمت سره سم نۀ دے ګهور مُهر عبدالقادر

اصل په هر څۀ کښې ځان څرګنګ کا
خوند متهرو به ګندم ګون نۀ شي خوشحال

که وصال دے الله راکړه
دا ده اَصل مدعا مصري خام

**ــــ ذات** :-(اص) اصیل ذات، د ښۀ ذات نه، د ښې کورنۍ نه ، د ښې وینې نه

حسن هغه دے چې اصل ذات لري
د سپاندے ګل به ګل د سمن نۀ شي

په اولاد کښې ئې اثر د اصل اوشي
د بد اصلو دے داماد نۀ شي سړے خوشحال

**بد ـــــ** :- اص ، بدذات ، کم اصل ، چې وینه ئې سوچه نۀ وي.بد خویه کمینه.

**په ـــــ**:- اص.په اصل کښې د اصل نه .د ذات نه ،د حسب نسب په لحاظ.

**ښۀ ـــــ** :- اص. ښۀ وینه ، ښۀ ذات ، سوچه ذات ،

**اَصلا** :- (اَ+ صْ+لا+) پ ، اس] هي ، بېخي ، هرګز ، قطعاً ، حتماً ، حتمي ، بالکل ، په هیڅ وجه.

بیا سلطان جلال الدین په سریر کښیناست
چې په اصل کښې غلجے د ولایت ؤ حمید

**اَصلاً** :- (اَ + صْ+ لاً) [ع ، ص] په اصل کښې د اصل نه.

په خبرو کښې ئې کچ د رښتیا نشته
هم په دا سبب اصلاً نشته فروغ خوشحال

**اِصلاح** :- (ا + صْ+ لا+ حْ) [ع ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اصلاح ګانې] (۱) درستي ، درستګي ، درستونه ، سمول ، نقص لرې کول ، ترتیب ورکول ، لکه : ''زما د شعر اصلاح ئې وکړه '' (۲) ځان سمول ، سر څنه کول.

**اِصلاح طلب** :- (اصلاح + طَ+ لَ+ بْ) [فا ، ص ، مذ] چې سمون غواړي ، چې درستول غواړي ، هغه څیز چې کمے زیاتے ئې سمول غواړي.لکه : '' دا مضمون اصلاح طلب دے ''

**اَصل من** :- (اَصل + مَ+ نْ) [پ (ب، خ) اس ، ص ، مذ، وا ،ج: (مؤ ، وا: اصل منه ،ج : اصل منې) ] شریف ، ښک خویه ، چې ورانکارے نۀ وي.د ښې وینې ، د ښۀ ذات ، د ښۀ نسل ، د ښې کورنۍ نه.لکه : '' هغه ډیر اصل من سړے دے ''.

**اَصل نسل** :- (اَصل + نَ+سل) [پ ، اس ، مر ، مذ ، وا] تومنه ، حسب نسب ، ذات ، قوم ، قبیله ، قام قبیله ، ذات ذریات. لکه:'' هغه په اصل څوک دے؟''

**اَصلي** :- (اَ + صْ+ لِيْ) [ع ، ص] (۱) خاص ،بنیادي ، اصل سره تعلق یا علاقه لرونکے ، (۲) واقعي ، رښتوني ، لکه : '' اصلي خبره داده '' (۳) خالص ، سُوچه، د نقلي برخلاف.لکه :'' دا اصلي بل ټبر دے '' (۴) پیدائشي ، فطرتي.

**ـــــ نافې** :- (اص) سوچه نافې.

دغه خال چې دې د وروځو په پیوند دے
د خطا د ملک اصلي نافې تري زار شه خوشحال

**اَصلیت** :- (اَ+ صْ+ لِيْ+ يَ+ تْ) [ع ، اس ، ص ، مذ ، وا] حقیقت ، په اصل کښې ، اصلي خبره ، لکه : '' ددې معاملې اصلیت راته وښایه ''.

ـــــ پټول :- (اص) حقه خبره نهٔ وئیل.حق پټول ، اصلي خبره نهٔ ښکاره کول ، رښتیا پټول.شف شف کول.

ـــــ څرګندول :- (اص) حقیقت ظاهرول ، بنیاد څرګندول.رښتیا وئیل.

**اَصناف** :- (اَ+ص+نا+ف) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : صنف] قسمونه، نمونې ، طرزونه ، جُزونه ، حصې ، رقمونه .

**اَصنام** :- (اَ+صْ+نا+مْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : صنم] لُغ : بُتان ، صنمونه ، د کاڼي نه تراشلې مجسمې.اص : شاعران خپلو معشوقو ته اصنام وائي.

**اُصول** :- (اُ+صُو+لْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اُصولونه] قاعده ، قانون ، لاره چاره ، طریقه.

دے که ناقبول دے په هر چا باندې قبول شي
کله ئې نظر د چا په فرع په اُصول شي خوشحال

**اُصولي** :- (اُ+صُو+لِيْ) [ع ، ص] د قاعدې مطابق ، د قانون په رڼا کښې ، بنیادي لکه : " دا اصولي خبره ده.(۲) د اصولو پابند ، لکه : " دا اُصولي سړے دے ".

**اَصیل** :- (اَ+صِيْ+لْ) [ع ، اس ،ص ، مذ ، وا ، ج : اصیلان ، (مؤ : وا : اصیله ، ج : اصیلې] (۱) د ښهٔ ذات نه ،د سُوچه وینې نه،د ښې کورنۍ (۲) شریف ، درونډ خویه ، ښهٔ سړے ، چې سرکش نهٔ وي.متل :- "اصیل ته اشاره کم اصل ته ډب".

اصیل به شرم حیا وفا لري
اصیل ئې اوګڼه هغه چې دا لري
چې سیپۍ ئې د دریاب نهٔ وي اصیله
کله ښهٔ ترې پیدا کېږي دُر ګوهر خوشحال

اصیلانو لره لږ وئیل وي بس عبدالغفارخان

**اَصیل توب** :- (اَصیل+تو+ب) [پ ، ص] اصیل والے ، ښهٔ خوئي.شرافت ، درونډوالے ، ښهٔ سړیتوب.

اصیل توب په نور څهٔ نهٔ دے
اصیل توب دے په خویُونه خوشحال

**اَصیل زاده** :- (اَصیل+زا+ده) [فا تر ، اس ،ص ،مذ ، وا ،ج : اصیل زادګان ، (مؤ : وا : اصیل زادګۍ)] د اصیل زوے ، د ښهٔ نسل نه ، د ښې کورنۍ ، شریف زاده ، درونډ خویه.

ټپه:

اصیل زاده نهٔ ئې هلکه
اصیل زاده له یارۍ نهٔ اخلي لاسونه!

**اَصیل والے** :- (اَصیل+وا+لَے) [پ تر ، ص] (وـــ اصیل توب)

**اِضافه** :- (اِ+ضا+فه) [ع ، ص ، مؤ ، وا ، ج : اضافې] زیاتوب ، زیاتوالے ، زیاتے ، ترقي.

د منصب په اجافو دي
تل په ما پسې روان خوشحال

**اِضافي** :- (اِ+ضا+فِيْ) [ع ، ص] (۱) نسبتي صفت ، هغه صفت چې اصلي نهٔ وي.(۲) مددګار ، مدد کوونکے ، (۳) زیاتي ، فالتو

**اَضحیٰ** :- (اَ+ضْ+حا) [ع ، اس] (۱) د قربانۍ ورځ (۲) د قربانۍ څاروے ، وضیحه (سو)

**اِضطراب** :- (اِ+ضْ+ط+را+ب) [ع ، ص ، مذ ، وا] پرېشاني ، بې قراري ، ناقلاري ، بې آرامي ، بې تابي.

چې مې نهٔ شي اضطراب د چا په ظلم
هومره صبر و سکون راکړې زما ربه حمید

**اَضغاث** :- (اَ+ضْ+غا+ثْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : ضغث] لُغ : یو موټے (کوده) شنې اوچې جارې.اص : پرېشان ، ګډ وډ ، بې ربطه او بې نظمه خبرې یا خیالات.

خدا ے دے اضغاث کا دا وران خوبونه
چې اوس ئې وینم په آشوبونه خوشحال

**اَضلاع** :-(اَ+ضْ+لا+ع) [ع، اس ، مذ ، ج ، وا : ضلع] ضلعې ، د ضلع جمع ، لکه : " زهٔ صبا ته د جنوبي اضلاع په سېل ځم ".

**اِطاعت** :- (اِ+طا+عَ+تْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اطاعتونه] لُغ: غاړه کېښېښودل ، اص : حکم منل ، تابعداري ، فرمانبرداري.

اطاعت د اولي الامر څکه نهٔ کړم
خَلیفه د زمانې په زړهٔ کافر دے خوشحال

**اَطالیه** :- (اَ+طا+لِ+یه) [ع ، اس ، معر ، مؤ ، وا] اټلئے ، اِټلي ، د یورپ د یو ملک نوم چې مرکزي او تاریخي ښار ئې روم دے.

**اَطبا** :- (اَ+طِب+با) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : طبیب] طبیبان ، حکیمان ، ډاکټران یا ډېکټران ، معالجان ، علاج کوونکي ، دارو دُرمل کوونکي.

چې علاج ئې وابسته په خپل مطلوب دے
د عاشق له رنځه څهٔ زده اطبا
د یارۍ د پاره ګرځم نهٔ ئې مومم
چې وفا لري هغه په کوم اطراف دي خوشحال

**اَطراف** :- (اَ+طْ+را+ف) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : طرف] لوري ، طرفونه ، غاړې ، اړخونه ، مخې ، مخونه ، ډډې ، پلوونه ، سیمې ، څنګونه ،

**اَطفال** :- (اَ+طْ+فا+ل) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا: طفل] هلکان ، ماشومان ، بچي ، ووړکي ، زنکي ، کړاچي ، وېړکي ، نابالغ.

په هر بېت ئې هسې رنګ شولې درپاځي
لکه زېږي په ډېر درد سره اطفال خوشحال

**اَطفال او عیال** :- (اص) ال اولاد ، بال بچ ، ښځه او بچي ، خاندان ، ټبر ، واړهٔ زاګهٔ ، کوږمه ، ماشومان

**اِطلاع** :- (اِ+طْ+لا+ع) [ع ، اس ،مؤ ،وا ،ج : اطلاګانې] اطلا ، خبر ، خبرې ، خبرول.لکه : " ماته نن اطلاع راغلې ده ".

**اِطلاع نامه** :- (اطلاع+نا+مه) [فا ، اس ،ص ، مؤ ، وا ، ج : اطلاع نامې] خبر نامه ، حکم نامه ، پروانه ، سمن ، نوټس ، خبرې.لکه:" پولس اطلاع نامه راوړه ".

**اِطلاعات** :- (ا+ط+لا+عا+ت) [فا ، اس ، مذ ، ج ، وا: اِطلاع] خبرونه ، اطلاګانې ، نوټسونه.

**اَطلال** :- (اَ+طْ+لا+لْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : طلل] نخښې ښنانې ، اثارونه ، خرابې.

که هزار غرونه جبال دي
ډېر سیندونه ډېر اطلال دي خوشحال

**اَطلس** :- (اَ+طْ+لَ+سْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اطلسونه] (۱) یو قسم رېښمین ګران بیه ټوکر.(۲) اص.د خانه کعبې د غلاف ټکړې چې د تبرک په ډول ئې د مړي په سترګو کښېږدي.(۳) د ښېنتنو د سړو یو نوم (۴) په افریقه کښې یو غر.

په توانګر باندې اطلس لکه شړۍ ده
په نادار باندې شړۍ ده پشمینه خوشحال

د اطلسو قبا غوارې نهٔ ئې مومې
له ناکامه دې خرقه کړه پشمینه رحمٰن بابا

**اِطمینان** :- (ا+طْ+مِيْ+نا+نْ) [ع ، ص ، مذ ، وا] (۱) تسلاً ، بې غمي ، د زړهٔ ارام ، بې فکري ، قلارے ، ساه صورت کېدل.قرارے ، د زړهٔ

سود ، طبع تسلي ، د زړهٔ دمه (۲) صبر ، قناعت

**أطوار**:- (أَ + طْ + وا + ر ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا: طور ] طريقې ، قاعدې ، اداب ، چال چلن ، خويونه ، عادتونه.

**أطهر** :- (أَ + طْ + هَرْ ) [ع ، اس ، تفض ] (۱) ډېر پاک ، زيات ، پاک. (۲) د مسلمانانو يو نوم.

**أظلم** :- (أَ + ظْ + ل + مْ) [اس تفض] ډېر ظالم ، بې حده ظالم.

فعل چې ئې ګورې هلاکو دے يا اظلم

چــادې اوربــدلې په اولاد کښې د آدم        خوشحال

**اظهار** :- (ا + ظْ + ها + رْ) [ع ، اس ،مذ ، وا] (۱) څرګندول ، ښئيل ښکاره کول ، ظاهرول ، جوتول ، برسېره کول ، په ډاګه کول. (۲)بيان ، اعلان.

چې د زيست او د روزګار شعور پيدا کا

کاروبــار ئې پــه څـو رنګه شي اظهار        خوشحال

**اظهار نامه** :- (اظهار + نا +مه) [فا تر ،اس،مؤ ، وا ، ج : اظهارنامې] اعلان ، اشتهار ، اطلاع نامه ، نوټس.

**أظهر** :- (أَ + ظْ + هَرْ) [ع ، اس تفض ] (۱) ډېر ښکاره ، ډېر واضحه صفا ، روښانه ، (۲) د مسلمانانو يو نوم.

**اعاده** :- (ا + عا + ده ) [ع ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اعادې ] تکرار ، سر دوباره ، بيا تېرول ، څهٔ خبره بيا کول ، د شروع نه ، د نوي سر نه بيا بيا. لکه : '' چې په نمانځه کښې څوک تعديل د ارکان ونهٔ کا بهتر دا دے چې هغه نمونځ دې اعاده کا '' (اخوند قاسم)

**اعانت** :- (اِ+ عا + نَتْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اعانتونه ] مدت ، مدد ، امداد ، لاس کونه ، مرسته ، مالي مدد ، لکه : '' هغوي زما اعانت وکړو''

**اِعتبار** :- (اِ + عْ+ تِ+ با + ر) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اعتبارونه] (و - اتبار)

چـې د ددور پــه يــارانو اعتبــار او اعتقــاد کــړم

زهٔ حميد واړه پخپله په خپل ځان باندې فشا کړم

**اِعتباري** :- (اِ+ ع + تِ + با + ري) [فاتر ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: اعتباريان] (و ـــ اتباري)

**اِعتدال** :- (ا + عْ + ت + دا + ل) [ع ، اس ، مذ ، وا ] (۱) يو برابر ، مېنځومانه ، ببن ببن ، په مېنځ مېنځ ، مېنځ حالي ، نهٔ زيات نهٔ کم ، برابر برابر ، ميانه حاله ، سر په سر (۲) اص : انصاف.

د هغه بادشاه به نمونځ د غاړې طوق شي

چــې دې نــهٔ لـــري د عـدل اعـتدال        خوشحال

**اِعتراض** :- (اِ+عْ + ت + را + ضْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اعتراضونه] (۱) نکتهٔ چيني ، عېب جوئي ، شُبهه ګوته اېښودل . (۲) قست ، مخالفت کول ، نهٔ منل ، نهٔ منظورول ، عکس. لکه : '' د هغهٔ په بل ئې اعتراض کړے دے ''

چې منکر پرې اعتراض کولے نهٔ شي

دا دې شــعر دے رحمٰن کـه اعجاز        رحمن بابا

هر چې په طالع زما سپېرهٔ کا اعتراض

وپـوهېدم دا درب په کړهٔ کا اعتراض        علي خان

**اِعتراضات** :- (اِ+ عْ + ت + را + ضا+ ت) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا: اعتراض] اعتراضونه ،مخالفتونه ،نکته چينئ ، ګوته نيول نيونه ،تنقيد ،سوالونه ، اړوکي لټول ، لکه : '' هسې اعتراضات مه کوه ''.

**اِعتراضي** :- (اِ+ عْ + ت + را + ضِيْ) [پ تر ، اس ، فا ع ، وا] (۱) اعتراض کوونکے ،نکته چين ، هغه څوک چې اعتراض کوي. اپوټه ، لکه : '' هغه اعتراضي سړے دے '' (۲) مف : چې اعتراض پرې شوے وي. د اعتراض قابل. لکه :'' اعتراضي معاملې مه راته وړاندې کوه ''.

**اِعتراف** :- (اِ+ عْ + ت + را + فْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اعترافونه ] (۱) منل ، اقبال ، اقرار ، تسليمول (۲) ښکاره کول.

ګوره بيا ئې کوم دروغ نفاق په زړهٔ دي

مــنافـق په خپل ګناه چې اعتراف کا        خوشحال

**اِعتقاد** :- (ا + عْ + ت + قا + د ) [ع ، اس ، مذ ، وا، ج : اعتقادونه ] عقيده ، يقين ، اتبار ، باور.

که دا عرض زمونږه رد شي

اعــتقاد به زمونږ بد شي        صدر خان

**بد ـــــ** :- (اص ) (۱) خراب اعتقاد لرونکے ، لکه : '' هغه بداعتقاد ټوله خبره ورانه کړه '' (۲) بې اعتقاده ، چې اعتقاد نهٔ لري.چې څهٔ عقيده نهٔ لري.

**بې ـــــ** :- (اص) چې اعتقاد نهٔ لري.بې عقيدې ، بې يقينه.

**اِعتکاف** :- (ا + عْ + ت + کا + ف) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اعتکافونه] لُغ : په يو کُټ کښې د خلقو نه ځان ته کښېناستل. اص : د روژې د مياشتې اخري لسو ورځو کښې په جماعت کښې د عبادت دپاره ګوشه نشين کېدل ، د رسول کريم صلی الله عليه وسلم يو سنت.سنت نبوي صلی الله عليه وسلم.

رامعلوم شو د اورنګ عدل و انصاف

ددهٔ ښــهٔ مســلـماني ښــهٔ اعتکاف

اوښکې مې تسپې دي او سلګې مې وظيفه ده

بــيا د اعــتـکاف دے زمـانــه پـــه خـليـفه ده        خوشحال

**اِعتماد** :-(ا + عْ + ت + ما+ د ) [ع ، اس ، مذ ، وا ] اعتبار، يقين ، باور ،تسلا ، ويسا.

د دنيا چارې همه واړه فـــاني دي

څوک به څهٔ کا په دا چارو اعتماد        رحمٰن بابا

د حُباب په زندګۍ څهٔ اعتبار دے        حميد

**بې ـــــ** :- (اص) بې اتباره ، بې باوره ، بې يقينه ، بې ويسا.

آه زما برګشته بخت

بې وفا بې اعتمــاده        حميد

**اِعتمادي** :- (ا + عْ + ت + ما + دي) [فا تر ، ص] (۱) اتباري ، باوري ، يقيني ، لکه :'' هغه اعتمادي سړے دے '' (۲) په افغانستان کښې يو خېل.

**اِعجاز** :- (ا + ع + جا + ز ) [ع ، اس ، مذ ، وا ] معجزه ، کرامت ، داسې کار چې بل عاجز کړي. د عادت نه خلاف کار ، خرقِ عادت داسې فعل چې عقل ورته حېران شي.

په اعجاز د محمد خلقو اقرار کړ

د بوجهل تل ناړې وې د تکذيب        خوشحال

**أعداء** :- (أَ + عْ + داء) [ع و اس ، مذ ، ج ، وا : عدو ] دښمنان ، غليمان ، غنيمان ، مخالف خلق.

واړه اوسپاره و خدا ے ته

کــه دوستان دي که اعداء        خوشحال

**أعداد** :- (أَ + عْ+دا + د ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : عدد] عددونه ، هندسې ، شمار.

**أعراب** :- (أَ + عْ+را + ب) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : اعرابي] بدوان ، د عربو د صحرا اوسېدونکي ، د عربو صحرانشين.

**أعرابي** :- (أَ + عْ+را + بِيْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج: اعراب] بدو ، د عربو د صحرا اوسېدونکے ، بانډيځے ، صحرائي ، بيدياني. لکه :'' يو اعرابي وو مسلمان شو ، پاک سرور ص وته حاضر شو ، عرض ئې وکه '' (اخوند قاسم)

**اِعراب** :- (ا + عْ + را + بْ) [ع ، اس ، مذ ] زور ، زبر او پېښن او داسې نور حرکتونه ، علامتونه.

**اِعراض** :-(ا+ عْ+را+ض) [ع،اس، مذ ، وا ] لُغ : مخ ګرځول ، مخ اړول ، څٔه ته شا کول.اص : کرکه ، وېزاري ، نفرت ، بې رخي ، انکار.

لابـــه ستا له تېغه عاشق چېري کا اعراض
د شمعې داور پښتې مينه نهٔ ځي په مقراض خوشحال

**اَعراف** :- (اَ + عْ +را + ف) [ع ، اس ، مذ ، وا ] لُغ : اوچت ځاے ، کرکره ، د چرګ چارخولک ، اص : د دوزخ او د جنت تر مېنځه يو مقام.

د همه واړو ملکونو ښتن خداے دے
کــــه جنت دے که دوزخ دے که اعراف رحمٰن بابا

**اِعزاز** :- (ا+ عْ+زا + ز) [ع ، ص ، مذ ، و ، ج : اعزازونه ] عزت ، درناوے ، شان ، وقار ، مرتبه ، درجه ، نمانځنه.

کـه بې نمازه د قيامت په ورځ ممتاز کا
د جنـت وته ئې روان په ډېر اعزاز کا خوشحال

**اَعصاب** :- (اَ + عْ + صا + ب) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : عصب ] نسونه ريشے ، (Nerves) د بدن حساسې ريشې.

**اَعصابي** :- (اَ + عْ + صا + بي) [ع ، ص ] د ريشو يا نسونو سره تعلق لرونکے ، لکه : '' د فلانى اعصابي بيماري ده ''.

**اَعضاء** :- (اَ+ عْ+ضا + ء) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : عضو ] اندامونه ، د بدن حصې ، آدومونه.

بيا دې ځاے دے توري خاورې
تـــار پـــــه تـــار واړه اعـضـاء خوشحال

**اَعظم** :- (اَ + عْ + ظَ + مْ) [ ع ،ص ،مذ ] ډېر لوے،زيات لوے ،د عظيم اسم تفصيل.

امامان دي څلور واړه مـــا مـــنلي
خو اعظم پکښې اعظم دے هوېدا علي خان
چې دعوىٰ لري محکمه هغه در وريسې غواړي
هـغه در وريـــسې غـــواړي چـې بهالري اعظمه خوشحال

**اَعلىٰ** :- (اَ+ عْ+لا) [ع ، ص ، مذ ] (۱) ډېر اوچت ، ډېر لوړ ، زيات ښهٔ ، ډېر ښهٔ ، ډېر لوے ، د علي اسم تفصيل ، (۲) عزتمن سړے ، لوړه درجه لرونکے.

چې ارواح پرې خوشې مومي هغه چار ګڼه اعلىٰ
د ادنىٰ چارې ادنىٰ دي د اعلىٰ چارې اعلىٰ
خوشحال خان

**اَعلىٰ ادنىٰ**:- (اِس مو) لوے وړوکے ، لوئې او وړې مرتبې ، ښهٔ خراب.

هسې نـه چـې سـړي واړه سره سم دي
څوک اعلىٰ دي څوک اوسط دي څوک ادنىٰ رحمٰن بابا

**اَعلام** :- (اَ + عْ + لا + مْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : علَم ] (۱) جنډې ، علامې ، نښانې ، بېرغونه ، نخښې (۲) غرونه.

په فرمان د بادشاهانو څهٔ باور دے
چــې بـتر دے د قاضيانو تر اعلام خوشحال

**اِعلام** :- (ا + عْ +لا+ م) [ع ، اس ، مذ ، وا ] خبر ، ښکندول ، خبرول مشتهر کول ، مشهورول.

**اِعلان** :- (ا + عْ+ لا+ ن) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اعلانونه ] ظاهرول ، خبرول ، اطلاع کول ، اشتهار کول ، خبردارے ، مشهورول ، ښکاره کول ، په ډاګه وئيل ، سپينه وېنا.

**اِعلانيه** :- (ا + عْ+لا+ ن + يه) [ پ ، ص ، مؤ ] اعلاميه ، په ظاهره ، په ښکاره ، په جوته ، په جار ، په ښکنده ، په سپين مېدان ، وېنا د ټولو په مخکښې ، په بلنګه ، په ډاګه ، په ډانګ پيلي ، لکه:''هغهٔ اعلانيه انکار وکړو''.

**اَعلم** :- (اَ + عْ + لَ + مْ) [ ع ، اس ، تفض ، مذ ] زيات پوهه ، زيات عالم ، د عالم اسم تفصيل.

که په واړو کښې اعلم په لطيفه دے
مشرف پـــه دا شرف بـو حنيفه دے حميد

**اَعمال** :- (اَ + عْ + ما + لْ) [ ع ، اس ،مذ ،ج ، وا : عمل ] عملونه ، کارونه ، کړهٔ ، چارې.

په محشر به مينه ورمه د دل سنګو
کـــه پــــه دا درنـېړي تـلـه د اعمال خوشحال

**اَعمالنامه** :- (اَعمال ، نا+ مه) [ فاتر ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اعمالنامې] (۱) هغه کتاب چې په کښې فرښتې ( کراماً کاتبين) د سړي عملونه ليکي ، عملنامه ، لکه : '' د قيامت په ورځ به نېک بنده خپله اعمالنامه په ښي لاس واخلي''. (۲) په دنياوي حساب کښې هغه کتاب چې د سرکاري ملازم کړهٔ په کښې ليکل شي.شيټ رول ، پټ رپورټ.لکه : '' ترقي به ورته ورنهٔ کړے شي.ځکه چې اعمالنامه ئې خرابه ده ''.

**اَعمىٰ** :- (اَ + عْ + ما) [ ع ، اس ، مذ ] ړوند چې په سترګو نهٔ ويني.

چـــې مې اوليدهٔ اوګړي د دنيا
تر قضا پورې اصم دي هم اعمىٰ خوشحال

**اَعوان** :- (اَ + ع + وا + نْ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : عون] (۱) مدد کوونکي ، مددګار ، ملګري.(۲) د يوې قبيلې نوم چې اوان هم ورته وائي.

**اَعوذ** :- (اَ + عُو + ذ ) [ ع ، اص ] لُغ : زهٔ پناه غواړم ، اص : د اعوذ بالله من الشيطٰن الرجيم مخفف.

پـــه اَعوذُ بـــه ئې فتح کـرم که خداے کا
په دا کار کښې که څوک ما وته شيطان شي خوشحال

**اَعوذ بالله** :- (اَعُوذُ + بِ + الله) [ ع ، کلمه ] زهٔ پناه غواړم په خداے سره ، د خداے په فضل پناه غواړم ، زهٔ د خداے تعالیٰ په مرسته يا مدد پناه غواړم.لکه : '' چې په خبره محتاج شي ، قرآن دے غوږولے نهٔ پرېږدي.اعوذ بالله دې ووائينه '' (اخون قاسم)

**اَغاز** :- (اَ + غا + ز ) [ اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اغازونه] پانه ، چينې ، چنې.

**اَغدُوغ** :- (اَ + غْ + دُو + غ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] مکر ، فرېب چلول ، دوکه ، ټګې تورې.

**اَغر** :- (اَ + غَ + رْ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج : اغرونه ] په لينده کښې راکښلے غشے.

**ـــــ کول** :- (اف) اص.غشے په لينده کښې د ويشتلو دپاره اچول.

**اَغراض** :- (اَ + غْ + را + ض ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : غرض ] غرضونه مطلبونه ، مقصدونه ، نيتونه ، ارادې ، مرادونه.

نـور اغـراض مې واړه اووتـــهٔ له فکره
خيال د يار مې اونيو غولے تنګ د زړهٔ علي خان

**اِغراق** :-(ا+غْ+را+قْ) [ ع،اس مذ ] (۱) ډوبول ، غرقول (۲)ژورتوب ،غرقوالے ، ژوروالے.

پــه دقيق شعر دقاق ؤ
ورمعلوم هغه اغراق ؤ صدر خان

**اَغروغ** :- (اَ + غْ + رُوْ + غ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] و ــ اغدوغ

**اَغرين** :- (اَ + غ + ري + ن ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] په لينده کښې راکښلے غشے ، په ځکېدلے لينده کښې غشے.

اَغــریــن دي د بـنیو نــهٔ وه بــلا وه
چې په ځان او زړهٔ ئې هسې نښانه شم    خوشحال

**اُغز** :- (اُ + غُ + زْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اُغزان ] غُز اکوړ ، چارمغز ، کُروټ (ګن) اُغَز.

**اَغزکې** :- (اَ + غْ + زَ + کې) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اغزکي] ازغکې، یو تریخ اغزن بوټے دے . چې د ځینې تاؤ او د ګرمۍ په مرضونو کښې استعمالیږي . دا بوټے د فشارِ خون دپاره هم استعمالیږي.

**اَغزن** :- (اَ + غْ + زَ + نْ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج ، (مؤ ، وا: اغزنه ، ج : اغزنې) ] (وـــ اغزن)

کهٔ د عشق لاره اغزنه ده هرګوره
دعـــا شـق په پښو څپلۍ دي د اور    رحمٰن بابا

**ـــــ بوټے** :- (اس، ص، هغه بوټے چې اغزي وي په کښې. د اغزو نه ډک بوټے.

د نو خطو درشتي زما آشتي ده
پــه اغزن بوټي آرام کا عندلیب    حمید

**ـــــ سرے** :- (با) اص ، ازاري ، تکلیف رسوونکے ، دردوونکے ، ضرري ، فسادي. لکه: "فلانے ډیر اغزن سرے دے".

**اَغزنول** :- (اَ + غْ + زَ + نَ + وَلْ) [ اف ، پ (قاموس) مص مت ] اغزن کول ، اغزي لګول. ما : اغزن که ، حا : اغزنوي ، ا : اغزن به کي امر : اغزن که

**اَغزے** :- (اَ + غْ + زے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اغزي ] وـــ اغزے

**ـــــ ایستل** :- (اص) وـــ ازغے ایستل.

**ـــــ څرخېدل** :- (اص) اغزي باندې خوږېدل ،اغزے چخېدل ، اغزے ماتېدل.

تـــر څلوېښتو کالو تېر شو لا تر اوسه
څېرې تېز اغزي پرې نهٔ دے څرخېدل    خوشحال

**ـــــ ختل** :- (اص) لُغ : ازغے لرې کېدل ، ازغے ویستلے کېدل ، اص : د لارې خنډ لرې کېدل ، د چا د مخې لرې کېدل ، لار صفا کېدل ، د مصیبت نه خلاصېدل.

**ـــــ کېدل** :- (اص) په ځان بد لګېدل ، چا دپاره تکلیف کېدل ،

**په سترګو کښې ـــــ کېدل** :- (اص) وـــ اغزے کېدل.

تــــر هغـــه حـــده پـــه هـــورت بـــد سرے یم
چې د درست جهان په سترګو کښې اغزے یم    رحمٰن بابا

**دزړهٔ ـــــ** :- (اص) لُغ : د زړهٔ ازغے ، اص : د زړهٔ خوږ دړد .

تهٔ د زړهٔ اغزے په کوم طبیب ؤکاږې
چې ؤکښلے ئې اغزے نـهٔ دے له پانې    خوشحال

**اَغزي** :-(اَ + غْ + زِيْ) [ پ ، اس ، مذ ، ج ، وا : اغزے ] ازغي ، خارونه.

که اغزي وي ستا د لاسه
تــر ګلــونو دي له پاسه    خوشحال

**ـــــ توبول** :- لُغ : ازغي اچول ، په لاره کښې ازغي اچول ،اص : ورانے کول. خنډ اچول ، شیطاني کول.

غمازانو اغــــزي تــــوئي د غمازۍ کړل
چې د دوي په وېنا غوږ کړې پرې څکوې    خوشحال

**ـــــ قبلول** :- لُغ : ازغو ته غاړه کښېښود ، ازغي خپلول ، اص : تکلیف قبلول ، کړاؤ ته غاړه کښېښودل.

په عاشق باندې غوغا غماز پېدول کا
چــې ګلــونــه پرېکوي اغزي قبول کا    نعمت الله

**ـــــ ماتېدل** :- (اص) وـــ اغزے څرخېدل.

**اَغزیانه** :- (اَ + غ + زْ + یا + نْ + رَه) [ اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ، وا ، ج : اغزیانې ] ازغنه ، اغزنه ، د ازغو نه ډکه.

**ـــــ مزکه** :- (اَف) اص . هغه مزکه چې د اغزو نه ډکه وي . ازغنه مزکه ازغېښنه مزکه ، اغزنه مزکه ، خارستان ، خارداره مزکه.

نـــور غـشي اغزین دے
سر اغزې دے یا خدنګ    خوشحال

**اَغزین** :- (اَ + غْ + زِ + ین) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، مؤ ، وا: اغزینه ، ج : اغزیني ] وـــ اغزن.

**اَغږل** :- (اَ + غْ + ګَ + لْ یا اَ + غْ + ژ + لْ) [ پ ، مص مت ] وـــ اغږل.

**اَغُستل** :- (اَ + غُ + سْ + تَ + لْ) [ پ ، مص ، مت ] وـــ آغستل

**اَغښل** :- (اَ + غْ + خَ + لْ یا اَ + غْ + شَ + لْ) [ اف ، پ (قاموس) مص مت] وـــ آغږل

**اَغلب** :- (اَ + غْ + لَ + ب) [ ع ، سا ، تفض ، مذ ] زیات غالب ، پوخ ، یقیني ، د غالب اسم تفضیل ، لکه . "زما اغلب ګمان دے چې هغه به راځي".

**اِغوا** :- (اِ + غ + وا) [ ع ، اس ، مؤ ] لُغ : دوکه کول ، غُلول ،اص : تښتول ، په زبردستۍ وړل یا بودل.

**اَغوت** :-(اَ + غْ + وَ + تْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ] دوبجن دوپچنه غله ، زړه غله . نمجن غنم چې ډودۍ ئې بې خونده او بې مزې وي . چرېشن

**ـــــ کول** :- (اَف) دوپچنول ، نمجن کول ، نمجنول.

**ـــــ کېدل** :- (اَف) دوپچنېدل ،نمجنېدل.

**اَغور** :- (اَ + غو + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اغورونه ] د لرګي نه جوړه د ناستي پیړه ، پیړۍ یا چوکۍ چې عام طور سره د پخلي په ځاے کښې استعمالولے شي.

**اَغوړ** :- (اَ + غُو + ړ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] بدل ، بدله ، انتقام

**اَغوړل** :- (اَ + غُو + ړَ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] ترسېرے مزے کول یا غښتل ، غړل.

**اَغوز** :- (اَ + غو + ز) [ پ (بن) اس ، مذ ، وا ، ج : اوزان ] اکوړ ، غوز، کُروټ ، مېټک ، متاک.

**اَغوز پوټ** :- (اَغوز + پو + ټ) [ پ (شن) اس ، مذ ، وا ] دنداسه ، مُساګ ، د غوز پټخ یا پوټکے ، پټ.

ځان اوچ د اغوز پوټ کړه
کـه تــهٔ غــوارې لب دیار    خاطر

**اَغوستل** :- (اَ + غُو + سْ + تَ + لْ) [ پ ، مص ، مت ] وـــ اغستل. لکه – "چې په زعفرانو جامه رنګ کا ، په مردانو اغوستل ددې حرام دي". (اخوند قاسم)

**اَغوښتل** :-(اَ + غُو + خ + تَ + لْ یا اَ + غو + ش + تَ + ل) [اف : پ (قاموس) مص مت ] غوړل ، غښتل ، په دوېم ځل تر سري ته تاؤ ورکول ، غړل. ما : واغوښت ، حا : اغوړي ، ا : اوبُه غوړي ، امر: واغوړه.

**اَغه** :- (اَ + غه) [ پ ، اس ، اش ، وا ] هغه ، هاغه ، اغه.

**اَغیار** :- (اَ + غْ + یا + رْ) [ ع ، اس ص ، مذ ، ج ، وا ، غیر ، (پ ، خ ، اغیاران ، مؤ ، وا : اغیاره ، ج : اغیارې ] (۱) پردي ، ناواقف خلق د بل ځاے خلق ، غېر خلق ، ناآشنا ، سوا ، نا پېژندګلویه ، فالتو، (۲) رقیب ، مخالف ، دښمن ، غېر غماز ، زیاتي ګړے.

په هر لوري چې نظر کړمه اغیار وي
د زړهٔ حــال وچــاتــه زهٔ وئیلے نهٔ شم    خوشحال

چــې مــې ولیدو د یار سره اغیار ګډ
په نارو شوم په فریاد شوم په چغار ګډ    عبدالقادر

په کردار کښې یار اغیار سره بېلېږي
تــر یــارانو ډېــر لــباس کــا اغیاران
ښځې بــه نــهٔ شي د هیچا یارې
په خولهٔ دي یارې په زړهٔ اغیارې          خوشحال

**اَغیاري** :- (اَ + غْ + یا + رِيْ) [ پ تر ، ص،مؤ،وا، ج : اغیارۍ ] (۱) ځان غېر یا پردے گڼل.(۲) دښمني ، مخالفت.
یایاري یا اغیاري ده که پوهېږې
په دا دوه کښې ته نهٔ دا شوے نهٔ هغه
چې ښې مې ځیر کړې دا بهترۍ
یا وېـزارۍ دي یــا اغــیارۍ دي    خوشحال

**اَغېږ** :- (اَ + غې + ږ) [ پ ، اس ص ، مذ،وا ] و ـــ اغېږ.

**اَغېزه** :- (اَ + غې + زه) [ اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ، وا ، ج : اَغېزې] اثر ، تاثیر

ـــــ **پر کېدل** :- (اَف) اص.د یوځیز په بل ځیز باندې اثر کېدل.

ـــــ **کول** :- (اَف) اص ، اثر کول ، تاثیر کول.

**اَغېزه ناک** :-(اَغېزه+ نا+ ک) [ اف :پ (قاموس) اس،فا،ع ، مذ ، وا ، (مؤ ،وا: اغېزه ناکه ، ج : اغېزه ناکې ] اثرکوونکے ، تاثیر لرونکے.

**اُف** :- (اُ+ فْ) [ ع ، کلمه ، مذ ) (۱) حیراني ، تعجب ، په څهٔ خبره د حېرانۍ په وخت اُف وئیلې شي. (۲) افسوس ، ارمان ، د هجران په وخت کښې وئیلے شي.(۳) د غلطۍ د احساس نه پس یا د هېرېدلو په صورت کښې وئیلے شي.(۴) د ځیز د زیات مقدار د ښولودپاره وئیلےشي (۵) د درد په وخت کښې دا کلمه وئیلے شي.

ـــــ **اُف کول** :-(اص) غاړه تازه کول ، لکه " په نمانځه کښې اُف تف کول چې ځوک نهٔ اوري .مکروه دے " (اخوند قاسم)

ـــــ **کول** :-(اص) د ارمان کلمه (۱) حېراني ظاهرول ، افسوس کول (۲) د غلطۍ احساس کېدو نه پس اُف وئیل (۳) د درد یا تکلیف په وخت اُف اُف کول.

ـــــ **کېدل** :- (اص) فناکېدل ، مړېدل ، پُو پنا کېدل.

ـــــ **نهٔ کول** :- (اص) (۱) خاموشه پاتې کېدل ، گیله نهٔ کول. چُن نهٔ کول،غلې پاتې کېدل، کړپ نهٔ کول ، غږ نهٔ ختل.(۲) فریاد نهٔ کول

**اُف اُف** :- (اُفْ + اُفْ) [ پ کلمه ] د زیات افسوس او حسرت دپاره دا کلمه وئیلے شي.
اَخ اَخ د وصال      اُف اُف د ارمان      غني خان

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) زیات افسوس یا حسرت ظاهرول ، (۲) د درد یا تکلیف په وخت فریاد کول.

**اِفاده** :-(اِ + فا + ده) [ ع ، ص ، مؤ ، وا] فائده ورکول ، نفع رسول ، گټه ورکول

**اَفاغنه** :-(اَ + فا + غ + نه) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : افغان ] افغانان ، پښتانهٔ.

**اِفاقه** :- (اِ + فا + قه) [ ع ، اس ، مؤ ، وا] ارام ، صحت ، په مرض یا بیمارۍ کښې کمي ، ښهٔ کېدل ، رنځ کمېدل ، صحت موندل ، سییته بیا موندل ، سَوَبْ کېدل ، لکه: " د بیمار د دارو په خوړلو افاقه وشوه ".

**اَفت** :-(اَ + فَ + تْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا، ج : افتونه یا افتینه ] و ـــ آفت (ددې سره تعلق لرونکي نور ټکي د افت په پټۍ کښې وگورئ)

**اُفتاده** :- (اُ+فْ+تا+ده) [فا ، ص ، مؤ] لُغ : پرېوتے ، غورځېدلے. اص : (۱) بې وسه ، عاجز ، غریب (۲) داسې زمکه چې دا نورې زمکې په مقابله کښې کښته او بې کاره وي.

**اِفتتاح** :- (اِ + فْ + تِ + تا + ح) [ ع ، اس ، مذ ] شروع ، اِبتداء ، اغاز بنیاد ، پرانستل

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) شروع کول ، ابتداء کول ، اغاز کول ، لاس پورې کول. (۲) د څهٔ ځیز په شروع کولو دستوره په څهٔ کار پېل کول ، پرانستل.

**اِفتخار** :- (اِ + فْ + تِ + خا + ر) [ ع ، اس ، مذ ] (۱) فخر کول ، لوئي کول ، برائي کول (۲) عزت ، لوئي.
په جمال ئې د سرېو
افتخار شو په پریو      صدر خان

زاهدان که افتخار کا په خپل زهد
د عا شــقو وظــیفــه ده د صنم نام      علي خان

**اِفتراق** :- اِ+فْ+تِ+را+قْ) [ ع ، ص ، مذ ، وا] بېلتون ، جدائي ، فراق
مرم له خپله اشتیاقه
نـهٔ د یــار لــه افتراقه      حمید

**اِفرا** :- (اَ+ فْ + را) [ پ (عا) ع : عَفریت ،اس، مذ، وا ] (۱) د پیرې نُوم (۲) اپرا ، دېو ، پیرے ، لوے دېو ، پهلوان (۳) مکار ، چالاک، او فسادي.(۴) ډېر خوراکي ، گېډه ور.

**اَفراتفري** :- (اَ+فْ+را + تَ+ فْ + رِيْ) [ فا ، ص ، مؤ ] اص ، گړېړ ، اړے گړے ، شور شغب ، شور ژوژ ، پرېشاني ، اله گله ، لکه:"د هغهٔ په راتلو افراتفري جوړه شوه"

ـــــ **جوړول** :- (اص) گړبړ جوړول ، اړے گړے جوړول ، شور زوږ سازول ، اله گُله جوړول ، ورانے کول ، الغاؤ تلغاؤ جوړول.

ـــــ **جوړېدل** :- (اص) گړبړ جوړېدل ، اړے گړے جوړېدل ، شور او شر جوړېدل ، اله گله جوړېدل ، خپل پردي کښې فرق نهٔ کېدل.

ـــــ **گډول** :- (اص) (و ـــ افراتفري جوړول)

ـــــ **گډېدل** :- (اص) (و ـــ افراتفري جوړېدل)

**اَفراد** :- (اَ + فْ + را + د) [ ع ، اس ، مذ ، ج، وا : فرد ] غړي ، سړي، خلک ، بنیادم ، نفري ، کسان ، اشخاص.

**اَفرادي قوت** :- (اص) زیاتې متې ، د افرادو تعداد ، د سړو طاقت ، ددې نه مطلب د چا د سړو په وجه مضبوطوالے او طاقت ، کار کوونکې نفري ، د کار جوگه نفري ، د کار د سړو شمېره.

**اَفراسیاب** :-(اَفرا + س + یا + بْ) [ فا ، اس ، معر ، مذ ، وا] د پخوانۍ زمانې د توران د یو بادشاه نوم چې په فارسي شاعرۍ کښې ئې ذکر شوے دے.

**اِفراط** :-(اِ + فْ+را + طْ) [ ع ، ص ، مذ ] زیاتوالے ، ډېروالے ، زیاتوب.
چې ئې لاس درباندې نهٔ رسي تفریط کا
خــو چې ظن ئې د زور اوشي کا افـراط      علي خان

ـــــ **تفریط**:-(اص) کمي زیاتي،کمي بېشي ، د اعتدال ضد ، افراتفري.
هغه بحر دے په افراط او په تفریط کښې
دغه بحر دُر دانه وم ، دردانه یم لاتر اوسه      خوشحال

ـــــ **کول** :- (ا ص) (۱) کمي زیاتي کول ، کمے زیاتے کول (۲) د حد نه زیاتېدل،زیاتوب کول،د حدنه آوړېدل یا اوښتل ، ډېر زیاتے کول.

**اَفروخته** :-(اَ+ فْ+ رو + خْ+ ته) [فا ، اس ص ، ج : افروختگان ] ستي ، سوے ، لوغړن ، سېځلے شوے ، بل کړے ، لمبه شوے.
ماوې ته د ما د تـورې شپې چراغ ئې
ولې تــهٔ پــه بله خونه افروخته شوې      خوشحال

**اَفروز** :- (اَ+ فْ + رو + زْ) [ فا ، ص ، مذ ] بل ، رڼا کوونکے ، روښانه کوونکے ، دا ټکے په مرکباتو کښې استعمالېږي.لکه جهان افروز.
ساقي راپاځه چې بــیا نــوروز راغــے
گل په گلشن کښې جهان افروز راغــے      خوشحال

**اَفریدے** :- (اَ + فْ + ري + دَ ے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : افریدي یا افریدیان ] (و ـــ افریدے)

څهٔ شنواري ، څهٔ مهمند ، څهٔ آفریدي ؤ
چې ئې مات کړهٔ د صوبې واړه لښکر خوشحال

**آفرین** :- (آ + فَ + رِيْ + نْ) [ فا : افرین ، د تحسین کلمه ] و ـــ آفرین . (ددې سره تړلي نور ټکي د افرین په پټۍ کښې وګورئ)

**اَفزون** :- (اَ + فْ + زُو + نْ) [ فا ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا : افزونه ، ج : افزونې ] زیات ، ډېر ، پرېوان ، کافي ، پرېمان ، هرڅهٔ ډېر تېر .

څو چنده ئې محبت د زړهٔ افزون شه
هغه دم په صحرا سر لکه مجنون شه حمید

دا په جګر خون کښې د نادان خوشي افزونه
عالم واړه حېران دے ، په دا هسې واقعات
ګلزار ته راغل ختې ګلګونې
د مخ شغلې تر نمر افزونې خوشحال

**اَفسانه** :- (اَ + فْ + سا + نه) [ فا ، اس ، مؤ ، ا ، ج : افسانې ] (۱) قیصه ، قیصه مسئله . (۲) بې بنیاده خبره ، د څانه جوړه خبره ، لنډه تخیلي قیصه چې حقیقت ئې څهٔ نهٔ وي . لکه هغه هسې افسانې بیانوي (۳) وران ، شېطان ، شریر ، وران کارے ، شرپسند (۴)مشهور ، شهرت موندلے .

په ډېر غم کښې دېوانه شو
په وګړي افسانه شوه صدر خان

زهٔ هلک وم افسانه وم له عالمه بېګانه وم
تر څلوېښتو کالو تېر شوم ، افسانه یم لاتر اوسه دولت

ـــــ **کېدل** :-(اص) مشهورېدل ، د څهٔ خبرې خورېدل ، په څهٔ وجهې د خلقو د خبرو موضوع جوړېدل .

**اَفسانه ګو** :-(اَفسانه + ګو) [ فا ، اس فا ع ، مذ ، وا ] قیصې ویونکے ، قیصه خوان ، قیصې مسئلې بیانوونکے ، د کلو په حجرو او چوکونو کښې خونده ورې قیصې اورولے شي - چې څینې په نثر کښې وي او څینې په نظم کښې . دغه قیصه اوروونکي ته افسانه ګو وائي . داستان ګو .

**اَفسانه ګوئي** :-(اَ فسانه [ ګو + ئِي) [ فا ، اس ص ، مؤ ، وا ] قیصه وئیل ، قیصې مسئلې بیانول ، قیصې بیانول .

**اَفسانه نګار** :-(اَفسانه+نَ + ګا+ ر) [ فا ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : افسانه نګاران ، (مؤ ، وا : افسانه نګاره ، ج : افسانه نګارې ] قیصې لیکونکے ، افسانې جوړوونکے . لکه : '' هغه د پښتو ښهٔ افسانه نګار دے ''.

**اَفسانه نګاري** :- (اَ فسانه + نِ + ګا+ رِيْ) [ فا ، اس ، ص ، مؤ ، وا ] د قیصې لیکل ، لنډه قیصه جوړول ، قیصې مسئلې د څانه تیارول

**اَفسانه نویس** :- (اَفسانه + نَ + وِيْ + س) [ فا ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : افسانه نویسان (مؤ ، وا : افسانه نویسه ، ج : افسانه نویسې ] (و ـــ افسانه نګار)

**اَفسر** :- (اَ + فْ + سَ + رْ) [ فا ، انګ ، افیسر ، اس ، مذ ، وا ، ج : افسران ( مؤ ، وا : افسره ، ج : افسرې ) ] لُغ : تاج . اص : اوسر ، مشر ، حاکم ، منصبدار ، عهده دار ، حکم چلوونکے ، لکه : ''خپل افسر چُټې راکړه '' د تاج ملګري د نوم یوه حصه لکه : افسرجان .

نهٔ مې تخت نهٔ مې افسر نهٔ مې سپاه شته
په تسخیر د کل جهان ختلے نمر یم خوشحال

لکه خاورې په سر خوښ یم زهٔ په عشق کښې
بادشاهان به هسې نهٔ وي په افسر خوښ حمید

**اَفسر توب** :- (اَفسر + توب) [ پ تر ، ص ) افسري ، سرداري ، اوسري حاکمي ، مشري ، منصب داري ، عهده داري ، لکه: ''افسرتوب دې مبارک شه''.

**اَفسرتیا** :- (اَفسر+ ت+ یا) [ پ تر ، ص ] (و ـــ افسرتوب)

**اَفسرده** :- (اَ+ فْ + سُ + رْ + ده) [ فا ، ص ] (۱) خفه ، زهیر ، غمجن دلګیر ، غمګین ، بې طبعې ، لکه : ''تهٔ خو نن افسرده ښکارې'' (۲) مړاوے ، پژمرده ، جینجن ، مرغیجن ، بې سُرته ، مړزړے ، بې چېرته .

د صورت تازه بهار ئې پژمرده شهٔ
د مخ ګل ئې پکښې مړاوے افسرده شهٔ حمید

ـــــ **خاطر** :-(اس ص ) دلګیر ، غمجن ، غم زپلے ، غم وهلے ، تباه حال ، خراب خسته ، پرېشان حال، خراب ،خاطر ،نولجن، خفه ، خفه زړے .

ـــــ **دل** :- (اس ، ص .(و ـــ افسرده خاطر)

**اَفسردګي** :-(اَ+ فْ +سُ + رْ + دَ + ګي) [ فا ، ص ، مؤ ] پرېشاني ، زبون حالي ، دلګیري ، غمجن توب ، غمګیني ، نولجنتیا ، زهېرتیا

**اَفسر ګوټے** :- (اَفسر+ ګو + ټے) [ پ تر ، اس ، تصغیر ، مذ ، وا ، ج : افسرګوټي ] وړوکے افسر ، دا ټکے د طنز په ډول اکثر وئیلے کېږي لکه : '' هغه څهٔ افسرګوټے غوندې دے ''.

**اَفسري** :- (اَ + فْ + سَ + رِيْ [ پ تر ، ص ، مؤ ، وا ، ج : افسري ] و ـــ افسرتوب . لکه : '' هسې افسري څرګندوي ''

**اَفسوز** :- (اَ + فْ + سو + زْ ) [ پ ، فا : افسوس ، د تاسف کلمه ، وا ، ج:افسوزونه ] افسوس ، اوسوز ، اپسوس،افسوز ، خفګان ، غم .

اوچت پاڅېد شهزاده د فراموزه
وزیران ئې په ژړا شود افسوزه (عبدالغفار)

**اَفسوس** :-(اَ+ فْ + سو +س) [ فا ، د تاسف کلمه ، وا ، ج : افسوسونه] (و ـ افسوز)

کاش که زهٔ د نامردانو په شماره وے
چې فارغ وے له ارمانه افسوه خوشحال

ـــــ **ارمان** :- (اص ) ډېر افسوس ، زیات غم ، بې کچه دلګیري ، د حد نه زیات غم زپلې توب .

ټپه: افسو ارمان ډېر ارمانونه
خالي لاسونه د خپل یار نه جګه شومه

ـــــ **اَفسوس** :- (اص) (و ـــ افسوس ارمان)

چې سره نهٔ شو غاړه غړئ
افسوس افسوس دے ارمان مې ډېر شهٔ خوشحال

ـــــ **اَفسوس ارمان ارمان** :- (اص) (و ـــ افسوس ارمان)

ټپه: افسوس افسو ارمان ارمان دے
خالي مېدان دے سترګې چاته واړه ومه!

ـــــ **کول** :- (مص تر ) ارمان کول ، غم کول ، خفګان ظاهرول ، لاس مروړل ، منګلې مروړل .

**اَفسوس ناک** :- (اَفسوس + نا + ک ) [ فا ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا: افسوس ناکه ، ج : افسوس ناکې ) ] غمناک ، د ډېر خفګان خبره د غم نه ډک خبر ، لکه : ''دا افسوس ناک خبر اوس راغے''.

**اَفسون** :-(اَ+ فْ + سُو + نْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : افسونونه ] جادو ، منتر ، سحر ، کوډې .

دا نغمه ده که جنون دے
دا سرود دے که افسون دے صدر خان

د هرې چارې اسباب پېدا کړه
افسون دې زده کا هغه چې مار نیسي خوشحال

ستا د زلفو مار خوړلے به روغ نۀ شي
که افسون د مسیحا وربانديٓ پُوکړي رحمٰن بابا

ـــــ **پو کول** :- (اص) منتر چُف کول ، جادو یا سحر کول۔
عشق یو هسيٓ رنګ افسون په عالم پو کړۀ
چــې عاشق په تورو سترګو نا بینا دے رحمٰن بابا

ـــــ **کول** :-(اص) جادو کول ، منتر پرېٓ اچول ، کوډيٓ کول ، سحر کول
ـــــ **لوستل** :(اص) د جادو یا سحر کلام وئیل ، چُف منتر کول ، چُو منتر کول
که پرېٓ ولوستو افسون خو دم په دم شۀ
لــه درخـــو چـــا اړواۀ آدم ، پـــه دم شـۀ علي خان

**اَفسون گر** :- (اَفسون + گَ + رْ) [ فا ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : افسون گران (مؤ ، وا : افسون گره ، ج : افسون گرے ) ] ساحر ،جادوګر ، جادو کوونکے ، سحر کوونکے ، کوډيٓ کوونکے ، منتر چُف کوونکے۔

**اَفشان** :- (اَ + فْ + شا + نْ ) [ فا ، ص ] (۱) خور وور ،ویر کړے شوے ، شندليٓ ، چوکاؤ شوے ، نوستلے (۲) ځلېدونکے ذرېٓ چې په وېښتو بانديٓ ئې ښځيٓ لګوي (۳) د اردو یو ناول۔

**اَفضل** :-( اَ + فْ + ضَ + لْ ) [ ع ، اس ، تفض ، مذ ، وا] ډېر یا ډېر زیات فضیلت لرونکے ، ښۀ قابل ، اعلیٰ ، د لوړيٓ مرتبې ، ډېر غوره۔لکه"د بل حدیث هسيٓ راغلے چې افضل دي عالمان په عابدانو ، "
تــر هــمه نــیکۍ هــغــه ثــواب دے
چې په دین د حق خبر عاصي ګمراه کا ملامست

**اِفطار** :- (اِ + فْ + طا + رْ ) [ ع ، مص ] روژه ماتول ، روژه خلاصول ، روژه ماتے۔

**اَفعال** :- (اَ+فْ+ عا + لْ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا: فعل] کارونه ، اعمال ،چارې ، کړۀ
عاقلان به هېڅ انکار ور بانديٓ نۀ کا
هر اَفعال چې صادر کېږي له حکیمه خوشحال

**اَفعي** :- (اَ+ فْ+ عا یا اَ + فْ+ عِيْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] اژدها ، ښامار
مه لړم شه مه افعي شه
غم فــزا راحت زرا شه خوشحال

ـــــ **اَفعال** :- (اص) چې عادت یا کارونه ئې د اژدها په شان وي۔خوئي ئې داسيٓ وي لکه د مار تېک۔
په مخ که هر څو صاحب جمال وي
نــنــه په زړۀ کښې افعي افعال وي خوشحال

**اَفغان** :- (اَ+ فْ+ غا + نْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : افغانان ، (مؤ ، وا: افغانه ، ج : افغانۍ ) ] (۱) د افغانستان اوسېدونکے (۲) پښتون ، افغاني ( پښتو) ژبه ویونکے ، افغان ، د پښتونخوا اوسېدونکے ، اپغان (۳) ژړا فریاد ، شور زوږ ، فغان۔
دانــــادره عــقــیده لــکه زمـــــا ده
لاعجب که بل پیدا هسيٓ افغان شي
د ګټنيٓ وخت تېرېږي
واویلا اَفغان افغان خوشحال
چې کشور د افغانانو معطر شي
د هر بیت مصرع مې زلفيٓ د خوبان کړي رحمٰن بابا

**اَفغانستان** :- (اَ+ فْ+ غا+ نِ + س+ تا + نْ) [ فا،اس ، مذ ، وا ] د افغانانو ملک ، د افغانانو وطن ، د پښتنو ملک ، پښتونخوا ، د پښتنو د هغه سلطنت نوم چې د پاکستان قبلئیز اړخ ته پروت دے

**اَفغاني** :- (اَ+ فْ د+ غا + نيْ) [ فا ، اس ص، مؤ ] (۱) د افغانانو ژبه ، پښتو،پشتو ژبه(۲) دافغانستان اوسېدونکے(۳) د افغانستان روپۍ

**اَفغاني** :- (اَ+ ف+ غا + نی ) [ فا ، اس ، مؤ ] د افغانستان د حکومت یوه سکه چې د هغه ځاے روپۍ بللے شي۔

**اُفق** :- (اُ+ فُ + قْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا] هغه ځاے چېرته چې د اسمان او مزکيٓ څوکيٓ یا څنډيٓ یو ځاے جنګېدليٓ ښکاري۔د اسمان لمن چېرته چې اسمان په مزکه راپرېوتے یا راټیټ ښکاري۔

**اَفکار** :-(اَ+فْ+ کا+ ر) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا، فکر ، ج : افکارونه ] فکرونه ، سوچونه ، غم اندېښنيٓ ، پرېشانه خیالات او تصورات سوداګانيٓ۔
کار چې خفه شي په افکارونه
واړه ابــتــر شــي هغه کارونه خوشحال

**اَفګار** :- (اَ + فْ + ګا + رْ) [ فا ، اس ، ص ، مذ ، وا] غوغ ، زخمي ، ژوبل ، مجروح ، غمګین ، غم زپلے ، تپې
ډېر په تاپسيٓ افګار دي
په فریاد او په کوکار دي خوشحال
چاته ناسازے د قسمت شمار کړم
چاته ښکاره مې زړګے افګار کړم عبدالقادر خان

**په زړۀ افګار**:- (اص) په زړۀ زخمي غمجن ، غم زپلے ،فکرمن،بریان ، سوے لوګړن ، ژوبل ، مایوس ، خفه ، بریده ، په زړۀ غوغ غوغ۔
اورنګ زېب راته یو کال اوشو چې پروت دے
پــه صــورت حــېران پــرېــشان پــه زړۀ افګار خوشحال

**اِفلاس** :- (اِ + فْ+ لا+ سْ) [ع، اس ، مذ ، وا] خواري ، نیستي ، غریبي ، عاجزي ، خواري ، موتازي ، تنګسي ، تنګسیا ، تنګدستي ، بې مالي ، نیشتي ، نیشتوالے۔
خپل قسمت به هر څوک مومي
کــه افــلاس وي کـــــه غــنا خوشحال

**اَفلاطون** :- (اَ+فْ+لا+ طُو+ نْ) [ یو ، اس ، معر ، مذ ، وا] (۱) انګ ، پلیتو ، د یونان یو مشهور فلسفي ، اپلاطون ، اپلېتین (وز) (۲) د طنز په ډول چالاک ته وئیلے شي۔چې ځان ته عالم فاضل وائي۔

ـــــ **د زمانيٓ** :-(اص) (۱) مشهور حکیم ، ډېر هوښیار ، ختے ، حکیم ، نابغه۔
په انجام د عاشقۍ ئې څوک پوه نۀ شوه
افلاطون د زمانيٓ ترې اریان پرېوت عبدالقادرخان

**اَفلاک** :- (اَ + فْ + لا +کْ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا: فلک ،ج :افلاکونه] اسمانونه
چې د خپل وجود له حاله خبر نۀ ئې
بېهوده په قبل و قال ئې د افلاک یونس
نظر وائۀ کا چې افلاکونه
د چا پاره سره تل ښوري خوشحال

**اَفلته** :- (اَ + فْ + لَ+ ته ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : افلتيٓ ] ګپ ، اپلته بې معنيٓ خبره ، کنځل۔

**اُفو** :- (اُ + فُ + فو ) [ فا ، د تعجب ، ملامتیا یا د افسوس کلمه ] د یوې واقعيٓ په اورېدو بانديٓ د تعجب یا افسوس ښکاره کولو په وخت د خوليٓ نه اُفو کلمه وزي۔اُ ، اوه ، آه ، لکه:"اُفو! هغۀ دا ناکاره خبره وليٓ وکړه" د اور سوے هم اُفو کوي۔

**اَفواج** :- (اَ+ فْ+ وا + ج) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا: فوج] فوځونه ، لښکرې ، ډېرسپاهیان،ډېرعسکریان ، جوپې جوپې ، ډليٓ ډليٓ ، ټوليٓ ټولي۔

**اَفواه** :-(اَ+ فْ+ وا + ه ) [ ع ، اس ، مؤ ، وا ، ج : افواګانيٓ ] بې بنیاده خبره ، دروغ خبره ، ګونګوسے [ګنګوسے] ، د یو فرضي خبرې مشهوري ، دوائي، خبره ، اواز ، ګپ۔

ـــــ **خورول** :-( اص ( افواه مشهورول ، یوې خبرې له باد ورکول ، یوې خبرې ته اشاعت ورکول ، غلط خبر خورول ، د وائي خبره یو بل ته وئیل ـ خلقو کښې بې چیني او پرېشاني پیدا کولو دپاره یو فرضي خبره خورول ـ د سیاسي مقاصدو په غرض یوه خبره په وطن کښې ګډول ـ د دروغو خبره اوازه ګډول ـ

**اَفیم** :- ( اَ فِيْ + مْ ) [ ه ، اس ، مذ ،وا ] اپیم ،اپین ،یوه نشه راوستونکې دارو ، چې د خشخاشو ډوډې د پئیو نه جوړېږي ـ افیون ـ

ـــــ **اَچول** :- ( اص ) اپیم خوړل ، اپین خوړل ، د اپیمو نشه کول ـ

**اَفیمچي** :- ( اَسیم + چي ) [ ه ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : افیمچیان ] اپیم خور ، د اپیمو خوړونکے ، افیمي ، اپیم یا اپین خوړونکے ، د اپیمو نشه کوونکے ، اپیمي ـ

**اَفیمي** :-( اَ+فِيْ+مِيْ ) [ فا ،اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : افیمیان ] وـــ اپیمي

**اَفیون** :- ( اَ+ فْ + يُوْ + نْ ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ] ( وـــ افیم )

**آقا** :- ( آ+ قا ) [ ت : آقا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : آقاګان ] وـــ آقا ـ

**اِقامت** :- ( ا + قا + مَ + ت ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اقامتونه ] لُغ : اودرېدنه ، قیام ، قرار ، استوګنه ، اص : په فرض نمونځ کښې په امام پسې تکبیر ـ

ما چې دا قصیده اووې
په دلې مې اقامت دے　　　　خوشحال

ـــــ **کول** :- ( اص ) (۱) اودرېدل ، قیام کول ، استوګنه کول ، (۲) په نمانځه کښې په امام پسې تکبیر وئیل ـ

د اسلام بادشاه اول معزالدین ؤ
چې یو کال ئې په دتي کښې اقامت ؤ　　　　خوشحال

ـــــ **وئیل** :-( اص ) دفرض نمانځهٔ په وخت په امام پسې تکبیر وئیل ـ لکه :
''سنت مؤکده لکه اذان ، امامت هم جماعت دے '' ( اخون قاسم )

**اِقبال** :-( ا + قْ + با +ل ) [ ع ،اس ، مذ ، وا ] (۱) خوش نصیبي ، خوش قسمتي ، خوش بختي ، برکت ، بختورتیا ، بخت (۲) اقرار ، منل (۳) یو مشهور فلسفي شاعر چې د شاعر اسلام په نوم هم یادېږي ـ پوره نوم ئې ډاکټر محمد اقبال دے ـ (۴) یو عام نوم ـ

ـــــ **بلند** :- ( اص ) د اوچت نصیب خاوند ، ډېر خوش نصیبه ، ډېر بختور ، ډېر قسمتي ، بلند اقبال ـ

ـــــ **بلند کېدل** :- ( اص ) ډېر خوش قسمت کېدل ، د چا عروج ته رسېدل ، د نېک بختۍ ستورے ځلېدل ، ډېر نېک بخت کېدل درجه اوچتېدل ـ

ـــــ **جرم** :- ( اص ) جُرم منل ، قصور منل ، خطا منل ، په خپل جُرم قائل کېدل ، خپل ځان مجرم بلل ، د یو جُرم ارتکاب منل ، په جرم داده کېدل ، لکه : ''هغهٔ اقبال جرم وکړو ''

ـــــ **لرم** :-( اص ) ښهٔ قسمت لرل ، خوش نصیبه ، نېک بخت ، بختور

ـــــ **مند** :- ( اص ) خوش نصیب ، خوشحال ، بختور ، خوش بخت ، نېک بخت ـ مؤ : اقبال منده ـ

**اِقبالي** :- ( ا +قْ + با + لِيْ ) [ پ تر ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اقبالیان ] (۱) هغه څوک چې بخت ئې ښهٔ وي ـ د ښهٔ بخت خاوند ، خوش نصیبه ، (۲) هغه څوک چې قصور ئې منلے وي ـ اقبال جُرم کوونکے ، خپل قصور منونکے ، په خپلو کړو قائل کېدونکے ، په خپل ګناه داده کېدونکے یا اقراري کېدونکے ـ

**اِقتباس** :- ( ا + قْ + ت + با + س ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ج: اقتباسونه ] لُغ : رڼا یا اور حاصلول ـ اص : د یو کتاب نه څهٔ عبارت انتخاب کول ـ د چا قول نقل کول ـ د چا وینا د مثال په طور نقل کول ـ

**اِقتداء** :- ( ا + قْ + ت + دا ) [ ع ، اس ، مؤ ] چا پسې تلل ، د چا پیروي کول ، متابعت کول ، چا پسې لاس په نامه اودرېدل ـ

لکه وروستو مقتدیان وړاندې امام وي
هــــــې مـــا پــــسې کـــــړې اقــــتـــدا　　　　رحمٰن بابا

**اِقتدار** :-( ا + قْ + ت + دا + رْ ) [ ع ، اس ، مذ ] دبدبه ، طاقت ، لوړے والے حکومت ، غلبه ، واک ، اختیار ، قوت ، زور ، سیاسي طاقت ـ

ـــــ **لرل** :- ( اص ) واک اختیار لرل ، طاقت لرل ، حکومت لرل ، دبدبه لرل ، قوت لرل ، سیاسي طاقت لرل ، زور لرل ـ

**اِقتصاد** :- ( ا + قْ + ت + صا + د ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ] میانه روي ، په اعتدال سره کار کول ، مېنځومانه چلېدل ـ

**اِقتصادي** :- ( ا + قْ + ت + صا+ دي ) [ ع ، اس ، ص ] مالي ، امد او خرڅ سره تعلق لرونکے ، مالي معاملات ـ

**اِقتصادیات** :- ( ا + قْ + ت + صا +د + یا +ت ) [ ع ، اس ، معر ] د معیشت علم ، هغه علم چې په هغهٔ کښې د ملک د مادي پیداوار په ښهٔ طریقه لګولو زده کړه ورکولے شي ـ د امد او خرڅ جائزه ـ

**اِقتضاء** :- ( ا + قْ + ت + ضاء ) [ ع ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اقتضاء ګانې ] تقاضا ، خواهش ، غوښتنه ـ

څوک به خوښ سره پرې نهٔ ږدي په جهان کښې
دا د ځــــایـــه دے د دهــــر اقــــتـــضــاء　　　　خوشحال

**اَقداح** :- ( اَ+ قْ + دا + حْ ) [ ع ، اس ، مؤ ، ج ، وا : قدح ] پیاله ، جام ، د شرابو ګلاس ـ

ساقي راکړه د رواح
پیاپې یــو څو اقداح　　　　مصري خان
آرزو لـــرم ســاقــي یـــــو څو اقداح
که ئې راکړې د خاصې شیشې له راحه　　　　خوشحال

**اَقدار** :- ( اَ+قْ + دا + ر ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : قدر ] قدرونه ، صفات ( ښهٔ او بد ) قیمتونه ، اساس ، بنیادونه ، اندازې ـ

**اَقدام** :- ( اَ + قْ + دا + م ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : قد ] قدمونه ، پلونه تلهٔ ، ځینې وخت د زمکې ناپ کولو دپاره هم استعمالېږي ـ

زهٔ د کښلیو په پښو سر ږدم که نور خلق
خـپـل سرونه د پیرانو په اقــدام ږدي　　　　خوشحال

**اِقدام** :- ( ا+ قْ + دا + م ) [ ع ، اس،مذ ،وا،ج : اقدامونه ] (۱) مخکښې تلل ، معاملې کېدل ، وړاندې تلل ، د یوې معاملې سر اېښودل ، (۲) د څهٔ جُرم ارتکاب ، چا باندې حمله ، په ګُذار کښې وړمبے کېدل ، په څهٔ کار کښې وړاندې کېدل ـ

ـــــ **خودکشي** :- ( اص ) د خپل ځان د وژلو کوښښ کول ـ د خودکشۍ نیت کول ، د ځان وژلو عملي قدم اخستل ـ

ـــــ **قتل** :- ( اص ) د چا د وژلو دپاره وړمبے کېدل ، په چا باندې د قتل په نیت حمله کول

**اَقدس** :-( اَ+ قْ + دَ + سْ ) [ ع ، اس ، تفض ، مذ ] ډېر پاک ، بې شانه سُتره ، ډېر نېک

**اِقرار** :- ( ا + قْ + را + ر ) [ ع ، اس ، مذ ،وا ، ج : اقرارونه ] قول قرار ، لوظ ، وعده ، منل ـ

رازق د خـــلق ئـې پـــه را اقرار کرم
څهٔ غم چې تا غوندې پروردګار لرم　　　　خوشحال

ـــــ **اَخستل** :-( اص ) چانه قول لوظ اخستل ، وعده اخستل ، څوک په یوه خبره ټینګول

ـــــ **کول** :- ( اص ) چاله قول ورکول ، چا سره لوظ کول ، وعده کول په ځان باندې د چا یقین راوستل ، منل

مرم په دې چې مې په مرګ نۀ راضي کېږي
دا څــۀ ژوند دے چې اقرار کا نۀ انکار کا — حمزه

**ـــــ نامه** :- (اص) د معاهدې يا اقرار ليک ، عهد نامه ، لوظ نامه ، د دوو فريقو تر مېنځ يو ليکلے تړون يا لوظ۔

**اِقراري** :- (ا + قْ + را + ري) [پ تر ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : اقراريان] (۱) وعده کوونکے ، لوظ کوونکے ، (۲) قصور منونکے ، د جُرم اقبال کوونکے۔

**اَقرب** :- (اَ + قْ + رَ + بْ) [ع ، اس ، تفض ، مذ ، وا ، ج : اقرباء ، اقربان] لُغ : ډېر نزدې ، جُخت ، اص : خپل خپلوان ، رشته داران ، د نزدې خپل ، د وينې خپلوان ، ورونه عزيزان۔ سو : د لړم خوي لرونکے (عقرب)۔ خل : غريب ، سپېرۀ ، بد قسمته ، بدبخت ، خوار۔

که هر څو ښۀ وي چې ستا پسند نۀ وه
غــافــل تــرې مه شه اقرب مقرب وي
اقرباء راتــه عــقرب شول
رضامند مې په تعب شول
که نېک که بد دي په داد ستور دي
سره خــپلوي نــۀ کا اقربان واړه — خوشحال

**اَقساط** :- (اَ + قْ + سا + ط) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : قسط] د قسط جمع ، قسطونه ، موټي ، نېټې۔

ښکنته پورته مخلوقات اقسام اقسام
جواهد دي ، کــه ارعراض دي که اجرام — حميد

**اَقسام** :- (اَ + قْ + سا + مْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : قسم) قسمونه ، رنګ په رنګ څيزونه ، رقم رقم ، قسم قسم۔

**اَقطاب** :- (اَ + ق + طا + ب) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا ، قطب] لُغ : د مېچنې تېرۀ کونه اص : د تصوف په اصطلاح کښې د بندګانو يا اولياؤ يوه مرتبه۔

بادشاه قطب اقطاب دي امراګان چې ورته ګرځي — خوشحال

**اَقطار** :- (اَ + قْ + طا + رْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : اقطار] قطارونه ، کربنې۔

**اَقليت** :- (اَ + قْ + لِ + يَتْ) [ع ، ص ، مذ ، وا ، ج : اقليتونه] کم شمېر ، کم شمېرے ، چې په تعداد کښې کم وي۔ د کمې ابادۍ خلق چې په يو ملک کښې ئې شمېره کمه وي۔

**اُقليدس** :- (اُ + قْ + لِيْ + دَ + سْ) [ع ، اس ، معر ، مذ] د يونان يو مشهور حساب دان چې د علم هندسه موجد ياديږي۔

**اِقليم** :- (ا + قْ + لِيْ + م) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اقليمونه] ولايت ، ملک ، رياسَت ، سلطَنت ، خطه۔

هېڅ ملک کشور اقليم له نېک فرجامو خالي نۀ دے
پــه هــر لــوري نــوبت دور ددوې دے چې ژغېږي — خوشحال

**اَقوال** :- (اَ + قْ + وا + لْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : قول] خبرې ، وينا۔

کــه دوې ستا په رضا درومي يا نۀ درومي
تــۀ هــر کــار کــړه په اقوال د ښو يارانو — خوشحال

**اَقوام** :- (اَ + قْ + وا + مْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : قوم] قومونه ، قبيلې خېلونه ، ذاتونه ، فرقې ، خلق۔

تــا چــې پېدا کړۀ هومره اقوام
حکمت دے څۀ دے يا ذوالاکرام — خوشحال

**اَکا** :- (اَ + کا) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اکاګان] (۱) اقا ، کاکا ، ترۀ ، اګا (۲) نيکۀ ، بابا (۳) مشر سړي ته د عزت په ډول وائي

**ـــــ خېل** :- [اص ، مذ ، مؤ ، وا : اکاخېله ، ج : اکاخېلې] افريدو ، يوسفزيو او غلجيانو کښې په دې نوم خېلونه دي۔

فېروز خېلې اکاخېلې د صفت دي
نورې زېړې خريېشې دي خچنې — خوشحال

**ـــــ مارود** :- (سو) اص ، نَسْخُوْرمتے ، ډېر سو باړے ، کاش کانبورے ، ډانګرېږے۔

**ـــــ ماروف** :- (سو ، اص ، (۱) دوه ملګري چې په خپلو کښې ئې غرقه دوستي وي۔ (۲) اکا معروف په سوات کښې د يوسفزي قبيلې د يوې تپې نوم دے۔

بيا اکا معروف ياديږي
منګوره کښې ستائيږي — ميا عنوان الدين

**اُکا** :- (اُ + کا) [پ (کاکاخېل) اس ، مذ ، وا] (۱) کاکا ، بابا ، اقا ، اګا ، مشر
سړي ته اکا وئيلے شي۔ (۲) يو۔ د څۀ په ورکېدلو چې د شپې په اوچت ځائې
نغارې سره غږ وکړے شي۔

**اُکا** :- (اُ + کْ + کا) [پ (خ) ص] اُکه (ګن) د سره ، هر ګز نۀ ، بيخي نۀ بالکل نۀ ، هډو نۀ۔

**اَکابر** :- (اَ + کا + بِ + رْ) [ع ، اس ، ص ، مذ ، ج ، وا : اکبر] (۱) لوے خلق ، ستر عزتمن خلق ، اميران ، رئيسان ، ستر خلق ، زورور ، برکتيان (۲) لوے څيز۔

اصــد غـــر اکـــابـــر واړه غـــنـيـمـت دے
که ئې څوک په نعمت پوهه شي لوے نعمت دے — حميد

**اَکاړه** :- (اَ + کا + ړه) [ه : اکهاړه ، پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اکاړې] د پهلوانانو د کُشتۍ دپاره ځائے ، د دنګل مېدان ، د کشتۍ مېدان ، د پرزولو ځائے۔

**ـــــ جوړول** :- (اص) (۱) د پهلوانانو د کشتۍ دپاره ځائے جوړول ، دنګل جوړول ، د کشتۍ مېدان تيارول ، (۲) د غوبل مېدان جوړول ، د بحث او هلې ګلې دپاره مېدان ګرمول ،

**اَکاړې** :- (اَ + کا + ړِيْ) [اف : پ (قاموس) مؤ] (۱) تريخوالے ، غُصه ضد ، سختي (۲) عاجزي ، خوشامنده۔

**ـــــ کول** :- (اف) اص ، (۱) غصه کول ، ضد کول ، سختي کول۔
(۲) عاجزي کول ، خوشامنده کول۔

**اُکاږل** :- (اُ + کا + ګَ + لْ يا اُ + کا + ژَ + لْ) [پ ، مص ، مت] اوباسل ايستل ، ويستل۔

**اُکب** :- (اُ + کُ + بْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] (۱) قدرت ، زور ، طاقت (۲) لوئي ، بزرګي ، عظمت۔

**اَکبر** :- (اَ + کْ + بَ + رْ) [ع ، اس ، تفض ، مذ ، وا ، ج : اکابر] لُغ : ډېر لوے ، مشر ، ستر ، اص : د مغليه سلطنت د يو لوے بادشاه لقب۔

بيا له پسه د همايون ځوې اکبر شو
چې د هر لوري ته مل ددۀ نصرت ؤ — خوشحال

**ـــــ آباد** :- (اص) د اکبر بادشاه آباد کړے ښهر ، آګره ،

**ـــــ باچا** :- (اس معر) اکبر بادشاه ، د لوے مغل شهنشاه جلال الدين لقب چې د کال **۱۵۵۲**ء نه تر **۱۲۰۵**ء پورې ئې په هندوستان حکومت کړے دے۔

د اکــبر بــاچا پـــه دور
شو د خپل اولس تور خان — خوشحال

**ـــــ پوره** :- (اس ، معر) د پښنو په تحصيل کښې يو کلے ، عام خلق ورته اکبر پوره وائي۔ متل : "اکبر بادشاه اکبر پوره جوړه کړه غلو ورته جبه جوړه کړه"۔

**ـــــ خان** :- (اس معر) د پښتنو يو عام مشهور نوم۔ متل : "بالامانۍ دې خلاصه وي په نوم د اکبر خان"۔

ـــــ **شاه** :- (اس معر) یو عام مشهور نوم.

ـــــ **کبائر** :- (اص) د کبیره ګناهونو میر ، ډېر لوے ګناه ، لکه :"اول کبیره ګناه کفر چې بنیاد د کبائر دے. چې اکبر کبائر ورته وایۀ شي. " (اخوند قاسم)

**اَکبری** :-(اَ+کْ+بَ+ری) [اف ، پ ، (قاموس) اس ، مؤ] (۱) مشهور خواړۀ. یو قسم خواړۀ ، (۲) د اکبر بادشاه اشرپۍ یا روپۍ.

**اَک بَک** :-(اَ+ک+بَ+ک) [پ (وز) اس ، ص ، مذ ،وا] اریان دریان ، اکه بکه ، حق بق ، هک پک ، اک پک ، بکه خولۀ ، بقه خولۀ.

**اِکتساب** :- (ا+کْ+ت+سا+بْ) [ع، مص] (۱) کسب سره شئے حاصلول ، په کوښښ سره حاصلول ، ګټل.(۲) ګټه ، حصول.

د کمال کسب پایه د سعادت ده
هغه شۀ چې د کمال په اکستاب شۀ — خوشحال

**اِکتفا** :- (ا+کْ+ت+فا) [ع ، اس ، مؤ] قناعت ، کفایت ، بس ، سود ، صبر ، تسلي ، پېرزوونه ، پېرزونه ، پېرزوینه.

که په وصل کښې ئې هر ساعت یو کال شي
لاپــــه دا د عاشـــق نــــۀوي اکتفـــا
(خوشحال خان ختك)

ـــــ **کول**:-(مص) بس کول،قناعت کول ، ډېر ګټل ، پوره ګڼل ، صبر ، لکه : "چې په یو ټوک د ډوډۍ خوک اکتفا کا" (اخوند قاسم)

**اکتوبر** :-(اَ+کْ+تُو+بَ+رْ) [انګ، اس ، معر] د عیسوي کال لسمه میاشت

**اَکثر** :- (اَ+کْ+ثَ+رْ) [ع ، ص ، مذ] (۱) ډېر ، زیات ، ډېر زیات ، پرېمانه ، ډېر تېر ، بس بسیار ، (۲) ډېر ځل ، بیا بیا ، عمومي.

هر چې اهل د دنیا دي
واړه هــسې دي اکـثر — رحمٰن بابا
ګرد غبار ، غارمه ، چیقره ، هوا بدبویه
رنـځ ، علـت و بـا پـېدا کاندي اکثر — خوشحال

**اَکو** :- (اَ+کَ+رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] (۱) سترګې تورېدل ، ګیج سر (۲) د مخ اثار ، د مخ د جذباتو حالت.

ـــــ **ورانېدل** :- (ظفر) اص ، سوخت اختستل ، غصه کېدل ، بدنیته کېدل ، بد غضبه کېدل.سوخت او قهر اختستل.

**اَکرابه** :- (اَ+کْ+را+به) [پ (وز) اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : اکرابې] سپېرۀ ، کمینه ، فضول او بې فائدې ښځه ، ټینګه ، کنجوسه ، منحوسه ، نامبارکه ، پواړه ، سپېرغتې.

**اِکرام** :- (ا+کْ+را+مْ) [ع ، ص ، مذ ، وا ، ج : اکرامونه] (۱) کرم بخشش ، بخښنه ، پېرزوینه ، مهربانۍ (۲) قدر ، عزت ، تعظیم ، دار مدار.

که په توره ختک خپل کړے ګُنډ خپل شي
کــنم هېڅ به ئې خپل نۀ کړي په اکرام
دوه مئین چې سره اووینې په سترګو
هم د سترګو په کاتۀ کښې ئې اکرام دے
دا اکــرامــونه دا انعامونه
د چا په یاد دي هسې کامونه — خوشحال

ـــــ **کول** :- (اص) قدرت عزت ، دارمدار کول ، تعظیم کول ، بخشش کول ، پېرزوینه کول ، جي جان کول ، عزت مدار کول ، راشه درشه کول.

**اِکراه** :- (ا+کْ+رآ+ه) [ع ، ص ، مذ] (۱) کرکه ، کراهت ، نفرت (۲) زبردستي ، جبر ، زور زیاتے.

د عاقل صحبت عاقل لره راحت دے
د جـاهـل سـره ئې ناسته په اِکراه شي — خوشحال

**اکرب** :-(اَ+کْ+رَ+بْ) [اف : پ (قاموس) اس،ص،مذ ، مؤ وا: اکربه ، ج : اکربې] مسکین ، عاجز ، بې چاره ، لاچاره ، بې وسه ، کریانه ، خړیس ، لکه : "د هغۀ اکرب نه به څۀ بُود شي "(سیند)

**اَکربتیا** :- (اَ+کْ+رَ+بْ+ت+یا) [اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ، وا] بې وسي ، عاجزي ، لاچاري ، مسکیني.

**اَکوبکو** :- (اکر+بَ+کَ+رْ) [پ ، اس ، ص] شکل شباهت ، کرۀ وړۀ ، د مخ کاسه ، خدوخال.

**اَکربه** :-(اَ+کْ+رَ+به) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اکربې] کهربا ، مرجان

**اَکرم** :- (اَ+کْ+رَ+مْ) [ع ، اس ، تفض ، مذ] (۱) ډېر سخي ، ډېر فیاض ، مهربان ، ډېر معزز ، ډېر عزتمن ، ډېر د قدر وړ ، (۲) یو عام نوم.

**اکره** :- (اَ+کْ رَ ه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] سُوچه سپینه بزه ، ببخي سپینه اوزه.بالکل سپینه چېلۍ.

**اَکره** :-(اَ+کْ+رَه) [پ (وز) اس،ص مؤ] د اسمان نه وربدونکي کاڼي

**اَکړے** :- (اَ+کْ+رَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د ښهر کنډرې ، کنډوالے ، کنډولے (خ) خرکنے ، خرابه ، د کافرو مانۍ ، ویرانۍ

**اَکړ** :- (اَ+کَ+ړ) [اف : پ ، (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا: اکړه ، ج : اکړې)] شنډ ، اوچ ، نااُمېده ، مایوسه.

**اُکړل** :- (اُ+کْ+ړَ+لْ) [پ ، ف ما] وکړل ، اوئے کړل.

**اَکس** :- (اَ+کْ+سْ) [پ (سو)اس ص، مذ ، وا ، ع ، عکس] (۱) برعکس، ضد ، اختلاف، کست، وران، دښمني، اپوټه چلېدل (۲) تصویر، سوړے ، فوټو.

**اَکسي** :- (اَ+کْ+سِيْ) [پ (سو) اس ص ، مذ ، ج : عکسي] په اکس چلېدونکے ، ضدي ، بد نیته ، کستي ، برخلاف ، اپوټه، لکه:"هغه ډېر اکسي سړے دے".

**اَکسیر** :- (اَ+کْ+سي+رْ) [ع ، اس ، ص ، مذ ، وا] (۱) کیمیا ، پارس ، هغه څیز چې د تانبې وغېره نه زر جوړ کړي.(۲) فوري اثر کوؤنکي دارو، تریاق لکه :"دا دارو د ملیریا دپاره اکسیر دي"

سیم و زر مس و تانبه ترې پیدا کېږي
د مـورنـس لکه بوته دے د اکسیر — خوشحال

**اُکښل** :- (اُ+کْ+شَ+ل یا اُ+خْ+کَ+ل) [پ ، مص مت] وکښل ، ووکشل ، (پ ، خ) ایستل ، ویستل.

**اَکله** :- (اَ+کَ+لَه) [اف :پ (قاموس) اس ص ، مؤ ، وا] بخیله ښځه ، سپېره او شومه ښځه ، پواړه ، اکرابه.

**اِکمتي** :- (ا+کْ+مَ+تِيْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، (مؤ : اکمتۍ یا اکمتنه)] حکمتي ، چالاک ، چلولي ، مکار ، فریبي.

**اَکمل** :- (اَ+کْ+مَ+لْ) [ع ، اس ، تفض ، مذ ، وا] ډېر مکمل ، ډېر زیات کامل.

**اَګو** :- (اَ+ګُو) [اف : پ (قاموس) اس] مذ : د پلار یا مشر ورور دپاره ، اکا .مؤ : نیا ، ادکه.

بل نیکۀ زما مل اکو چې په ختک کښې
دۀ راوړۀ دا بــخـره د لـــوي مــقـدم — خوشحال

**ملک**ـــــ :- اس معر.د خوشحال خان ختک نیکۀ.

**اَکوان** :- (اَ+کْ+وا+نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، ج] د ماشومانو په ژبه کښې بچې ، ماشومان ، اوړکي (خ) کاکي ، (ګن) ککے.

**اَکو بکو** :- (اَ+کُو+بَ+کُو) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د یو مارغۀ نوم چې د هغۀ د اواز نه دا ټکے اخستے شوے دے.(۲) د ماشومانو د یوې لوبې وینا ، اکوبکو سرصندقو." اکو بکو ماما راغے په پتې ، غوا

ئې لنګه سخې ښتي ".

**اکوخېل** :- (اکو + خې + ل) [پ ، اس ، معر ، مذ (مؤ : اکوخېله ، ج: اکوخېلې) ] (۱) په دې نوم یو خېل دے (۲) د دې خېل یو سړے.

**اکوړ** :- (اَ + کُو + ړ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اکوړونه] غوړ، غُوَړ (سو)، ماتهک ، (وز) مېتهک ، (بنو) اغز ، کُروَتْ (ګن) چغزي او متهاک.

**اکوړ** :- (اَ + کُو + ړْ) [پ ، اس ، معر ، مذ ] ملک اکوړ خان چې د خوشحال خان ختهک غُر نیکۀ ؤ او اکوړه سرائے ئې اباد کړې ده.اکوړے.

اکوړے شهباز یحیٰی واړه سرۀ زر ؤ
په خپل دور واړو ښۀ تېر کړو خپل وار　　　خوشحال

**ـــــ خېل** :- (اس ، معر) د اکوړي اوسېدونکي خلق (مؤ ، وا : اکوړ خېله ، ج : اکوړ خېلې]

دغــو اص د کال وبا
خدا ے ئې مه راوله بیا
اکوړ خېل مې پکښې اومړل
لو ے ، هـلـک مـرو نـسا
د خــتهکو جُونه واړه غوښې دي
خو یواځې اکوړ خېلې دي مېر منې　　　خوشحال

**ـــــ وال** :- (اس ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا: اکوړواله ، ج : اکوړوالې) د اکوړي اوسېدونکے.د اکوړي خلق.

**اکوړے** :- (اَ + کو + ړَے) [پ ، اس ، معر ] د پېښور په علاقه کښې د یو کلي نوم چې د خوشحال خان ختهک غُر نیکۀ اکوړ ملک په نوم مشهور دے . مخکښې به ئې ورته سرائې ویل . د ختهکو د قبیلې مشهور ځاے دے.اکوړه ختهک.

یحیٰی خان د اکوړي ؤ
چې بل نۀ ؤ هسې ځوان　　　خوشحال

**اکوړۍ** :- (اَ + کو + ړَۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] سره بوزینه ، سره چمړه ، یو قسم ښرمن ، نرۍ سره ښرمن ، سره بوزي.

**اکوزي** :- (اَ + کو + زِيْ) [پ ، اس معر ، مذ ، (مؤ : اکوزۍ) ] د پښتنو د یو خېل نوم .

یو یوسف زے نۀ دے چې ما ئې منت بار کړ
لا پــه اکــوزیـــو د نـنـګ چار ده مسَلم
اکـــوزي جــونه واړه لکه باغ دي
مولي زۍ پکښې شته د چند ڼ ونې　　　خوشحال

**اکوک** :- (اَ + کُو + کْ) [اف : پ (سیند) اس ، مذ ] هغه مېوه چې لا پخه شوې نۀ وي.او خوند ئې تریو وي. کچه او شنه مېوه . (قاموس) کچه بادام یا زردالو وغېره.

**ـــــ کول** :- (اَف ، اص ) د اونې مېوه اخستل ، بارداره کېدل ، د اونې مېوه نیول ، اونه په مېوه راتلل ، د اونې بار نیول.

**ـــــ نیول** :- (اَف ، اص ) (و ـــ اکوک کول )

**اِکونا** :- (اِ + کو + نا ) [پ (خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : اکونې ] د غلې دپاره جوړ لوے کندو ، خمبه ، کولئے (ګن) (انبار خانه)

**اکوڼے** :-(اَ+کُو+ڼے ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اکوڼي] د ښاروي بچے ، د ځناور بچے ، سکوړے ، سخے ، سخوټے.

**اُکه** :- (اُوْ + کَه) [پ (ګن) ص ] اوکه ، بېخي نه ، هرګز نه ، هډو نه.

**اکه پکه** :- (اَ + کَه + پَ + کَه) [پ ، اس ص ] (و ـــ اک پک )

**اکۍ** :- (اَ + کۍ ) [اف : پ (قاموس ) اس ، ص ، مؤ ] اُه کۍ ، د مور یا ترور دپاره د عزت نوم.مشرې خور دپاره هم دا ټکے استعمالېږي.

**اکېڼے** :- (اَ + کِېْن + ړے ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: اکېڼي] (۱) د مشک هغه تسمه چې د اوبو راوړو په وخت ئې سرته اچوي. (۲) د تانستې کمانچه.

**اګا** :- (اَ + ګا ) [پ (بټ) اس ، مذ ، وا] اقا ، کاکاجي ، ترۀ دپاره د عزت لفظ.

**اګابګا** :-(اَ+ ګا + بَ+ ګا ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] د هلکانو د یو لوبې نوم ، اکو بکو.

**اګاه** :- (اَ + ګا + ه ) [فا ، ص ] آګاه ، خبردار ، واقف ، پوهه.

**ـــــ کول** :- مص مت ، خبرول ، واقف کول ، پوهه کول ، واقفول ، اشنا کول ، بلدول

**ـــــ کېدل** :- مص لا ، خبرېدل ، واقف کېدل ، پوهېدل ، اشنا کېدل.

**اګاهو** :- (اَ+ ګا +هُوْ) [پ ، ص ، ه : اګاؤ ] وړاندې ، مخکښې ، وړمبے ، د اول نه

پېش چې قبل و قال کښې ستا په حسن د لپدیز کښې
بــرېــښں مــې شـي دلبره اګـاهو د ملا په تیر کښې　　　علي خان

**اګدر** :- (اَ + ګ + دَ + رْ) [پ (سو) اس ، مذ ، وا] (و ـــ اژدر )

**اګدور** :- (اَ + ګ + دُو + رْ) [اس ، ص ، مذ ، وا ] (و ـــ اږدر )

**اګر** :- (اَ+ ګَ + رْ) [پ ، ه ،اس ، مذ ،وا ، ج : اګرونه] د عود لرګے یا وُنه ، یو قسم لرګے چې د سوځولو سره خوشبوئي ترې نه ځي.

د وطــن ونـــې چــنــدڼ اګر دي
خاورې ئې واړه مشک و عنبر دي　　　خوشحال

**ـــــ بتۍ** :- (اص) د عود د خوشبویه لرګي باتۍ چې سوځولو سره خوشبوئي خوروي.اګرباتۍ.

**اګر** :- (اَ + ګَ + رْ ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: اګره ، ج : اګرې ) ] (۱) فضول او کمینه سړے ، سپک سړے ، (۲) راورټي . مرئے ، بندي ، غلام.

**ـــــ توب** :- (اَف) ص.کچه توب ، سپکوالے ، سپکتیا ، کمینه توب.

**اګر** :- (اَ+ ګَ + رْ ) [ فا ، حرف ، شرط ] که ،که چېرته ، په شرط ددې ، بالفرض.که چېرې.

**اګرچې** :- (اَ + ګَ + رْ + چې) [فا ، حرف ، عطف] سره ددې چې ، تر دې چې. اګرکه.لکه " اګرچې دا ذکر مې د زړۀ په حضور نۀ دے ". (اخوند قاسم)

**اګرمګر** :-(اَ + ګَ +رْ +مَ + ګَ + رْ ) [پ،ه ] هغه دغه ، لم لېټ ، انې بانې ، چل ول، معطل کول ، نکړي نکړي ، ښنډول ، ډیل ، ځنګول ، لکه : "هلکه ! ښۀ اګرمګر دې جوړ کړي دي.سمه خبره وکړه."

**اګرمے** :- (اَ + ګْ+ رَ+ مےَ)[اف : پ(قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اګرمي] و ـ اربړمے

**اګره** :-(اَ+ګْ+ ره) [ه : اګره ، اس معر ] په دې نوم ډېر کلي مشهور دي

**اګرې ته پښې نیول** :- مح.بې وسه کېدل ، مړ کېدل ، د دنیا نه سفر کول یا کوچ کول ، د دنیا نه تلل ،

**اُګره** :- (اُ + ګْ+ رَه ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اُګرې ] (۱) اوګره ، یو قسم نرم لېټے ، اتوب ، (۲) (سو) د ورېژو ، ماستو یا شملو او غوړو جوړ خوراک چې د ناشتې په طور خوړے شي.

**اګري نګري** :- (اَ+ ګْ+ رِ+يْ + نَ + ګْ + رِ + يْ ) [پ ، اص ] ناپرسانه ښار ، بې دریافته باچائي ، دلپړسنګ باچائي (خ ) ړنده باچائي ، سکه شاهي ، باګړدي ، اړے ګړے.بدنظمي.

**اګړ کړه** :- (اَ+ګَ + ړْ + ک + ړَ ه ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ، وا، ج: اګړکړې ] د یو دارو نوم ، د یو غرئیز بوټي جرړې ، اکرکره ، کرکره ، عاقر قرحا ،

**اګست** :- (اَ + ګَ + سْ + تْ) [ انګ ، اس ، معر ] دعیسوي کال اتمه میاشت.

**اګل** :-(اَ + ګَ + لْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اګلونه] (۱) هغه ځائې چې کُلالان ترې نه خاوري راوړي. خاوري ګاړي ، خار ګاړي ، (۲) هغه وله چې د زیمناکو مزکو د وچولو دپاره کنستے شوي وي. ایراب (۳) کنده ، خندق ، خارخوړی.

**اګن** :- (اَ + ګَ + نْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اګنونه ] یو ورکوټے خربخنه مرغۍ چې خوش اوازه وي. خراړه.

**اګن** :-(اَ+ګَ+نْ) [ پ (خل) اس،مذ ]د خراړي یو قسم ، دا مرغۍ سپینه شان د خراړي نه لږه وړه وي .لکه : " دا اګن ښومره ښکلے دے ".

**اګو** :- (اَ+ ګُو) [ پ (ګن) اس ص ، مؤ ، وا ، ج : اګوګانې ] (۱) ترور ، د پلار یا د مور خور ، پُپو ، ماسي ، (۲) د حقارت په ډول اګوبګو ورته وائي.

**اګواړې** :- (اَ + ګْ + وا + ړیی) [ ه (راورتیي) اس مؤ ، وا] د اس د مخکښې پښې ترلو دپاره مزے یا پړے.

**اګوړی** :- (اَ + ګْ + وَ + ړی) هغه پړے چې د یو څاروي یا ځناور مخکښې پښې پرې ترې ، اګواړې.

**اګه** :- (اَ + ګَ + ہْ) [ فا ئ، اګاه ، ص ] (و ـــ اګاه)

**اګی** :- (اَ + ګَ + یی [ پ ، اس ، مؤ ] (۱) ها ، هاګی ، انګی ، اویه ، وویه ، هویه ، یویه ، هګی (۲) مرګي ، خائې ، خوټې.

**ـــ اَچول**:-(اص) (۱) د چرګې اګۍ ورکول ، دځۀ مارغۀ اګۍ ورکول (۲) په یو خبره ډېر ساعت تېرول یا غلے کېدل.

**ـــ ټولول** :- (اص) اګۍ کوځه په کوځه کښې په بیعه اخستل.

**ـــ جنګول** :- (اص) د اختر یا داسې رنګ نورو میلو په موقعه د اګو جنګولو مقابله کول.

**ـــ شاربل** :- (اص) (۱) دچرګې په اګو کښېناستل او د سینې لاندې اګۍ منبل تر هغه پورې چې ځینو نه بچې راووځي او ځینې هسې سخا شي. اګو له د سینې ګرمي ورکول.(۲) د اګۍ زېړ او سپین ګډ وډ کول.

**ـــ قلمي کول** :- (اص) د جنګولو دپاره اګۍ په مېنځ نیمه کړي. سپین او زېړ ترې اوباسي او د څوکې طرف ته ئې کاڼے کښېږدي او موم نه ئې ډکه کړي . بیا دواړه ټکړې یو ځائے کړي . هسې سمه اګۍ ښکاري . د جنګولو دپاره دا ډېره مضبوطه وي او په جنګولو کښې نۀ ماتېږي.

**ـــ لاکي کول** :- (اص) د جنګولو دپاره اګۍ کښې یو نرے سُورے اوکړي. سپین او زېړ ترې په خولۀ راکاږي.بیا د لاکو نه ډکه کړي. اګۍ په ګرمو اوبو کښې اونیسي چې لاک وئیلې شي . د اګۍ څوکې سره اولګي . دغسې اګۍ مضبوطه وي او په جنګولو کښې نۀ ماتېږي.

**په ـــ کښې چونډېدل** :- (اَف) مخ.لُغ : اګۍ کښې دننه خبرې کول.اص : ډېر اوښیارتوب ، ډېره دانائي.په کم عمر کښې ډېره پوهه ښکاره کول. ډېر چالاک ، د غاښونو سره پېدا کېدل ، په منډه پېدا کېدل.

**اګي وال** :- (اَ+ګِي + وا + لْ) [ پ ، اس، فا ، ع ، مذ ، وا ، ج : اګي والان : (مؤ ، وا : اګي واله ، ج : اګي والې ) ] هاوال ، د اګو سودا کوونکے ، هغه ښوک چې اګۍ اخلي او خرڅوي ئې.لکه " هغه دے اګي وال راغے."

**اګېچ** :- (اَ + ګِي + چ) [ پ (سو) اس ، ص ، مذ (مؤ : اګېچه) ] هغه نوکر چې صرف د ورځې کار کوي . دهاړي . اګېچه مزدوري صرف کوهستانیان کوي چې د ورځې کار کوي او د شپې کور ته لاړ شي لکه : " اګېچ کار مې موندلے دے ". مؤ : " د اګېچې ښځې دې رنګ ورک شي. نن شته سبا به نۀ وي ".

**اګیر بګیر** :- (اَ + ګِيْ + رْ + بَ + ګِيْ + رْ) [ پ ، ص ] (۱) (سو) اوتر بوتر ، اریان دریان ، حق حېران ، مایوسه ، بې درکه (۲) (خل) ډېر زیات خلک ، مچ مېږي

**اګېړې** :-(اَ + ګي + ړې) [ اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: اګېړي] د شُملو د مشک (غړکے) د خُولې یا لاستو ترلو مزے یا پړے.

**اګېیل** :- (اَ + ګي + يَ + لْ) [ پ (ظرف) مص مت ] (۱) چا پورې ملنډې کول ، په چا پورې ټوقې کول ، (۲) د بورۍ خولۀ ترل ، د بوجۍ خولۀ ګنډل ، ګنډیول.ما : واګېیۀ ، حا: اګېیي ، ا : وُبه اګېیي ، امر : واګېیه.

**اَل** :-(اَ + لْ) [ پ (خ) ه : هل ، اس ، مذ ، وا ، ج : الُونه یا الینه ] (۱) یوې قُلبه ، هل ، (۲) ځینې ملنګان د خېر غوښتو په وخت د ال اواز کوي لکه : "اَل ! خېر راوړئ".

**اَل اَو ال** :- (اَلْ+اَ+وا+لْ) [ پ ، فا ، حال احوال ، اس مر ، مذ ] حال احوال ، ال اینځال ، اول اینځول ، طبیعت او طبع ، خېر خېریت ، روغ نا روغ ، ښۀ بده.

**اَل اَلواد** :- (اَلْ+اَلْ+وا+دْ) [ پ ، فا ، ال اولاد ، اس مر ، مذ ] زوزاد ، اولاد ، خاندان، کورنۍ ، پښت پېداوښت ، بال بچ ، وارۀ زاګۀ ، اهل وعیال ، ټبرداري.

**اَل دُواَل** :- (اَلْ+دُو + اَلْ) [ پ ، ص ] (۱) پټے دوه ځله داسې اړول چې یو وار قلبه په اوږدو او بل وار په لنډو پرې اوکړے شي . (۲) ګډ وډ اړولے راړولے ، پړمخې اړولے . (۳) (سو) په موسم کښې یو وار چې پټے واړولے شي او په دوېم وار بیا واړولے شي.

**اَل ماله** :- (اَلْ+ ما + له) [ پ (سو) ص ] د کروندې دپاره زمکه تیارول او په کښې قلبه وشي بیا ماله کړے شي. دې ته اَل ماله وئیلے شي

**اَلا** :- (اَ+لا) [ پ ، ه : هلا ، اس ، مؤ ، وا] (۱) حمله ، چپاؤ ، هپه ، اپه (۲) اف: تُند او چاخ تګ ، تېز تلل ، (۳) زر ، بېړه ، تادي ، شابه ، (۴) د حېرانۍ کلمه.

**ـــ کول** :- (اص) تُنده منډه وهل ، زغلېدل ، تېزه منډه وهل ، ترپ کول ، چاخ او چابک تګ ، اپه کول.

**ـــ کوونکے** :- (اس ، فا ع ، منډه کوونکے ، زغلېدونکے ، ترپ کوونکے ، چاخ او چابک تلونکے.

**اَلا** :- (اَ + لا) [ پ (عا) ع : الله تعالیٰ ، اس ، مذ ، وا] الله تعالیٰ ، خدا ے پاک ، خداوند کریم.

**ـــ ایستل** :-(اص) اواز ایستل ، ژغ کول ، نعرې کول ، د جنج د ډولۍ د وړولو په وخت یا د اشر ، بلندرې ، بسکر یا بګاړې په وخت آوازونه ایستل ، د خوشحالۍ چغې ویستل.

**ـــ ویل** :- (اص) (و ـــ الاایستل)

**اَلا اَلا** :- (اَ + لا+ اَ + لا) [ اف : پ (قاموس) اس ، مر ، مؤ ] چپاؤ ، انقلاب ، اړے ګړے ، باچا ګردي.الغاؤ تلغاؤ ، اګرې نګرې.

**په ـــ ګرځېدل** :- (خل) اص ، تېز تېز ګرځېدل ، ګړندے او چاخ چاخ تلل ، په ټوپونو ټوپونو تلل ، په یو پښه ګرځېدل.

**اَلا اَلا** :- (اَ + لا+ اَ + لا) [ پ (عا) ، ع : الله الله ، اس ، مذ ] الله الله ، د خداوند پاک نوم بیا بیا اخستل.

**ـــ ویل** :- (اص) الله الله کول ، د خدا ے پاک عبادت کول ، د الله پاک ذکر کول ، د خدا ے حمد او ثنا ویل.تسبیح ویل ، خدا ے تعالیٰ یادول.

**اَلا بلا** :- (اَلا+ بَ+ لا) [ پ ، اس مر ، مؤ ، وا ] (۱) بې ښې توښې څیزونه ، بې فائدې او بې کاره څیزونه، خراب تُراب . (۲) ګډ وډ څیزونه ، توک توک څیزونه ، قسم قسم (۳) مارې دارې ، ورانې ویجارې ، روا نا روا ، اپې شرپې.متل :- " الابلا به وکې ، د کالۀ زړګے به ښۀ کې ، د خدا ے تعالیٰ ځواب به څۀ کې ".

چې د عشق الابلا دي
همګې مې دي قبولې
نهٔ بنګ خورې نهٔ شراب څښې بې مستۍ
آلـــوده ئـــې پـــه هـــزار الابـــلا     خوشحال

**ـــــ په غاړه مُلا** :- (اص) (۱) د څهٔ ذمه واري، نه ځان خلاصول ، (۲) خپله غلطي په بل ورتپل (۳) په بل پسې نيت تړل ، د بل په پل تلل د مُلا په نيت مې نيت د ے

**ـــــ به ګردن مُلا** :- (اص) (و ـــ الابلا په غاړه د مُلا)

**ـــــ په غاړه کول** :- (اص) بې ضرورته ځان په څهٔ کار کښې ګېرول ـ ډېرې ذمه واري، په سر اخستل ، خامخا ګران کا ر ته ورلاندې وتل ځان ګناه ګار کول.

د دنيا له ميني هسې مبدل شوې
څهٔ دروغ الابلا دې کړل په غاړه     بابو جان

**ـــــ خوړل**:- (اص) ګډ وډ ځيزونه خوړل ، تکليف رسوونکے خوراک خوړل ، توک توک خوراک کول. داسې ځيزونه خوړل چې په خېټه کښې تکليف پيدا کوي. قسم قسم ځيزونه خوړل ، بنهٔ او خراب نهٔ کتل.

**ـــــ رانغړل** :- (اص) (و ـــ الابلا خوړل)

**ـــــ غړول** :- (اص) کنځلې کول ، بنبرې کول ، زيږې کول ، کفر غړول ، بده ژبه خوځول ، خرابه ژبه خوځول ، ناروا ويل.

**ـــــ ويل** :- (اص) ګډې وډې ويل ، بې مطلبه خبرې کول ، غرور ويشتل ، غرور برابرول ، اپلتې غفلتې ويشتل.

**اَلاپ** :- (اَ + لا + پْ) [اف : پ (قاموس) ع : علاف ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : الاپان] (۱) اوږه يا ووږهٔ خرخوونکے ، دونه يا دُوړه خرخوونکے ، (۲) هغه ژرنده ګړے چې د کورونو نه غله په مقرر مذ ، بار يا حق راوړي او د اوړولو نه پس ئې ورته رسوي.

**اِلاج** :- (اِ + لا + ج) [پ (ي) ع : علاج ، اس ، مذ ، وا ، ج : الاجونه] ايلاج ، علاج ، د مرض دارو ، د رغېدلو په نيت دوائي خوړل ، دارو دُرمل ، دم درود.

**ـــــ کول** :- (اص) لُغ : دارو کول ، علاج کول ، اص : وهل ټکول ، په زور سمول ، بنهٔ برابرول.

**اَلاج** :- (اَ + لا + ج) [پ ، ع : حلاج ، اس ، مذ ، وا] ډنډټي ، ډينډپ ، تنداپ ، ډانډنچي ، ډنډت مار ، لاج ګر.

**اَلاج ګر** :- (اَلاج + ګَ + رْ) [پ (روسي قاموس) اس، فا ع، مذ، وا] (و- الاج)

**اَلاجي** :- (اَ+لا+جِي) [اف :پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) څرخه چې د پوندانې نه پرې پُنبه بېلوي. (۲) يو چينجے د ے د اينځر ونه کښې وي.

**ـــــ کول** :- (اص ) (۱) په الاجي باندې مالوچ او پوندانه سره بېلول (۲) مجازاً تنګولو ته هم وائي.

**په اَلاجو ـــــ کېدل** :- (اص) ډېر زيات وجود خوږېدل ، د تکليف او درد د کبله اډوکي ماتېدل ، د درد نه اډوکي مات ګوډ کېدل ، دل کېدل ، دل دُول کېدل. الاجي کېدل.

**اَلاچه** :- (اَ + لا + چه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : الاچي] اليچه يو قسم پټېداره کپړا چې پخوا به زړو زنانو اغوستله. اوس هم په ځينې ځايونو کښې دا رخت استعمالېږي. لکه : '' اغوستن ئې الاچه وو''

**اَلاچه پوش** :- (اَلاچه + پو + شْ) [فا ، اس ،فا ، ع ، مذ ، وا] هغه څوک چې الاچه اغوندي .

په ټکي ټکي جامو کښې که لوي ده
سپلمي املخان هم الاچې پوش دي     خوشحال

**اِلاچي** :- (اِ + لا + چي) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج ] لاچي ، لوچي ، يو قسم خوشبويه دانه چې په قهوه او دارو کښې استعمالېږي. شنهٔ الاچي او تور الاچي دوه قسمونه لري.

**اَلا داد** :- (اَلا + دا + د) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] د هلکانو يو قسم لوبه چې دوي د يو بل نه پټ شي. بيا ترې زغلي او ډبونه سره ورکوي. علي شنګ ډبلې.

**اَلاډو** :- (اَلا + ډُو) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] د تر کاڼانو يو قسم برمه چې د الاډونې نه لږه ورکوټې وي.

**اَلاډوبه** :- (اَ+لاَ+ډُوْ+به) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ] د اړې ګړې وخت ، د الې ګُلې وخت ، د الغاڼ تلغاڼ وخت ، ګډ وډ وخت، باچاګردي ، اړے ګړے

**اَلاډونے** :- (اَ+لا+ډُوْ+نَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] د ترکاڼانو يو قسم لويه برمه

**اَلاډېر** :- (اَ + لا + ډې + ر) [پ (سو) اس ص] (۱) ډېر زيات ، زښت زيات ، بې حده زيات ، مچ مېږې ، الاډېري (۲) د يو کلي نوم .

**اَلارغه** :- (اَ+لا+رْ+غهٔ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] يو مارغهٔ د ے چې پښې ئې اوږدې وي او رنګ ئې برګ وي. يعني خړ سپين وي

**اَلازوري** :- (اَلا + زُوْ + رِيْ) [پ (ب، خ) ص ، مؤ] ژړا انګولا ، ويرتپڼور ، نارې سورې ، ناڅاپي ، د غم يا د هيبت چغې چغارې ، الاګوئي ، لکه : '' ډېره الازوري ئې وکړه '' .

**اَلاستي** :- (اَ + لا + سْ + تِيْ) [اف : پ (قاموس) ص] (۱) هغه ځيز چې په نظر نهٔ راځي. غائب ، پټ (۲) ناڅاپي ، د نيامه ، اچانګ ، ناګهانه.

**اَلاک** :- (اَ+لا+ک) (پ ، ع : هلاک ، اس ، مذ ] (۱) هلاک ، مړ ، وژلے ، تباه ، قتل شوے (۲) زيات ستړے ، ستومانه ، ژوبل.

**اَلاک دلاک** :- (اَلاک + دَ + لا + ک) [پ ، (خل) اص] اريان دريان ، هک بک ، مايوسه ، هک دک ، شش و پنج کښې ، پرېشان ، دوجالا.

**اَلاکول** :- (اَلا + کَ + وَ + لْ) [پ ، مص ، مت] (۱) هلاکول ، الاقول ، مړول ، قتلول ، وژل (۲) زيات ستړې کول ، تکليف رسول ، تنګول، ما : الاک که ، حا : الاکوي ، ا : الاک به کي ، امر : الاک که

**اَلا کوونکے** :- (اَ + لا + کَ + وو+ نْ + کَے) [پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج: الاکوونکي ] (۱) هلاکوونکے ، الاقوونکے ، مړوونکے ، قتلونکے ، وژونکے (۲) زيات ستړے کوونکے ، تکليف رسوونکے ، تنګوونکے.

**اَلا ګوي** :- (اَلا + ګو + يِيْ) [پ (سو) ص ، مؤ] (و ـــ الازوري)

**اَلاګوئي** :- (اَلا + ګو + ئِيْ) [پ (ګن) ص ، مؤ] د خدا ے ذکر ، په زوره زوره ذکر کول. خدا ے يادول ، خاص طور په نيمه شپه يا سحر وختي ذکر کول.

**اَلال يا الول** :- (اَ+لا+لْ يا اَ + لو + لْ) [پ (عا) ع : حلال ، ص ، مذ (مؤ ،وا: الاله ، ج : الالې) ] (۱) حلال ، ذبحه شوے ، کوتلے شوے (۲) د حرام ضد ، روا ، جائز ، په شرع درست.

**اَلال شوے** :- (اَلال + ش + وَے) [پ مف ، مذ ، وا ، ج : الال شوي ) ] (۱) حلال شوے الول شوے، ذبحه شوے ، کوتلے شوے (۲) روا شوے ، جائز شوے.

**اَلال کړے** :- (اَلال + کَ + ړَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : الال کړي] (و ـــ الال شوے)

**ـــــ چړګ** :- (اص) تابعدار ، هر وخت خدمت ته تيار ، د کنائې په طور د تابعدارۍ ، وفادارۍ او بې عوضه ملګرتيا دپاره وئيلې کېږي. لکه : '' زهٔ خو ستا الال کړے چړګ يم '' .

**اَلالا** :- (اَ + لا + لا) [اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ] (۱) تالاترغه ، چور ما چور

(۲) نعرې ، سورې ،چغې ، ګوته نيول ـ پړه ، جرايستل ، د سپکاوي چغې ، ډېرې چغې ـ (۳) د الله الله مخفف ـ

تهٔ چې عاشقي کړې قبلوه په عاشقۍ کښې
تـل پـه عاشقانو بـانـدې خلق الالاکړه خوشحال

**ـــــ کول** :- (اص) (۱) تالاترغه کول ، چُور ګډول ، لُوټ کول (۲) نعرې سورې کول ـ په چا پسې چغې ويستل ، د چا شرمول ، په چا پسې جر جر کول يا جر ايستل ، (۳) د بريالي توب او ګټې په وخت د خوشحالۍ چغې ـ

**ـــــ کېدل** :- (اص) (۱) تالاترغه کېدل ، چُور ګډېدل ، لوټ کېدل (۲) نعرې سورې کېدل ، چا پسې چغې ګډېدل ، په چا پسې جرجر کېدل ، (۳) د بريالي توب او ګټې په وخت چغې کېدل ـ

**اَلالول يا الولول** :- (اَ+لا+لَ+وَ+ل يا اَ+لو+لَ+وَ+لْ) [پ (عا) مص مت] (۱) حلالول ، ذبحه کول ، کوتل (۲) اص ، په چا ډېر زياتے کول ، د چا سره ناجائزه کول ، بې قصوره کس ته سزا ورکول ظلم کول (۳) روا کول ، جائز کول ، شرعې ته برابرول (۴) ګران خرڅول ، پـه پڅه چاړهٔ حلالول ، څهٔ څيز د اور په بيه خرڅول ـ ما: الال کړهٔ ، حا : الالوي ، ا : الال به کي ، امر : الال که ـ

**اَلالوونکے** :- (اَ+لا+لَ+وُونْ+کَے) [پ اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : الالونکي] (۱) حلالوونکے ، ذبحه کوونکے ، کوتونکے (۲) اص: په چا ډېر زياتے کوونکے ، د چا سره ناجائزه کوونکے ، بې قصوره کس ته سزا ورکوونکے ، ظلم کوونکے ، (۳) روا کوونکے ، جائز کووونکے (۴) ګران خرڅوونکے ، د اور په بيه خرڅوونکے ، په پڅه چاړهٔ حلالوونے ـ ګران پوشے ـ

**اَلالوونے** :- (اَ+لا+لَ+وُو+نَے) [پ ، مذ ، وا ، ج : الالووني] اس فا ع: و ــــ الالوونکے ـ اس مف : الالوونے څيز . هغه شے چې حلالېدلو ته نزدې يا تيار وي ـ په ساعت ګړۍ کښې حلالېدونکے د قصاب په څُونه ولاړ ـ

**اَلاله** :- (اَ+لا+له) [پ ، ع : حلاله ، اس ، مؤ ، مؤ] اص : چې يوه ښځه طلاقه کړے شي او هغه بيا د هغه سړي سره نکاح کول غواړي نو تر هغې د دوي دوباره نکاح نهٔ شي جائز کېدے تر څو چې دا ښځه د چا بل سړي په نکاح شي ـ او د يو بل خوارهٔ اونهٔ خوري او بيا په څهٔ وجه هغه دې له طلاق ورکړي دې مېنځنۍ نکاح ته حلاله وائي ـ يعني د شريعت په رو سره جائز کول ـ

**اَلالهٔ** :- (اَ+لا+لهٔ) [پ (عا) اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : الالې] (۱) حلاله ذبيحه ، د حلالولو څاروے ، (۲) د حلالولو کار يا عمل ـ

**اَلالي** :-(اَ+لا+لِيْ) [پ (عا) اس ص ،مذ ، مؤ] (۱) حلالي ، هغه څوک چې حرام نهٔ کوي ـ هغه بچے چې د حلالې نطفې نه پېدا وي ـ (۲)د طنز په ډول حرامي ته الالي وائي ـ وران کارے ، فسادي ، شېطان حرکتي ، علتي ، شر خورونکے ـ

**اَلالېدونکے** :- (اَ+لا+لې+دُو+ن+کے) [پ (عا) مف ، مذ ،وا ، ج : الالېدونکي] حلالېدونکے ، ذبحه کېدونکے ، چې حلالېدلو ته تيار وي

**اَلالېدل** :- (اَ+لا+لې+دَ+لْ) [پ (عا) مص لا] (۱) حلالېدل ، ذبحه کېدل ، (۲) اص : په چا ډېر زياتے کېدل ، د چا سره ناجائزه کېدل بې قصوره سزا ورکېدل ، په چا ظلم کېدل ، (۳) روا کېدل ، جائز کېدل (۴) څهٔ څيز په ګرانه بيه اخستل ، د څهٔ څيز په اخستلو کښې دوکه خوړل ، ما : الال شهٔ ، حا : الالېږي ، ا : الال به شي ـ

**اَلامان** :- (اَ+لا+ما+نْ) [ع ، د حېرت کلمه] پناه ، د څهٔ خبر نه د تنګ راتلو په وخت وئيلې کېږي ـ

هر چې دانايان دي په امان امان تېرېږي
هئ تـوبـه له دوره الامان له دې آئـين خوشحال

**اَلاماني** :- (اَ+لا+ما+نِيْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، ج: الامانيان] انقلابي ـ

**اَلامه** :- (اَ+لا+مه) [پ (عا) ع : علامه ، اس ،ص ،مؤ ، وا ، ج :الامې] نخښه ، نښانه ، اثار

**اَلاورتې** :-(اَ+لا+وَ+رْ+تې) [اف : پ (قاموس) ص ، مؤ] (۱) سپکې خبرې ، بې ځايه حرکتونه ، اَپلتې غپلتې ه، الوتې (۲) ډېرې خبرې ، زياته ژغېدا ، کړتا ، کړتې ـ

**ـــــ پېښنه کول** :- (اَف) اص ـ (۱) سپک کار کول ، پرېوتے کار کول (۲) د بې عقلۍ کار کول ، د ناپوهۍ کار کول ـ

**ـــــ پېښېدل** :- (اَف) اص ـ نابللے په دعوت پېښېدل ، بې بلنې په ډوډۍ پېښېدل ، طفېلي کېدل ،

**ـــــ کول** :- (اَف) اص ـ سپکې خبرې کول ، پرېوتې خبرې کول ، بې بوده ژغېدل ، عبث ژغېدل ، شګوفې ويشتل ، ګپې ويشتل ، بکواس کول ، بې بادو غرېدل ، بې موجبه خبرې کول ـ

**ـــــ وئيل** :- (اَف) اص : (۱) اپلتې غرول ، الوتې وئيل ، بې بادو غرېدل (۲) بې مطلبه خبرې کول ـ

**اَلاوې وهل** :- (اَ+لا+وې+وَ+هل) [پ ، مص تر] په يو مخ منډې وهل ، په مخه زغلېدل ، نهٔ اودرېدل ـ

**اِله** :- (اِ+لا+ه) [ع ، اس ، مذ ، وا] معبود ، د قوت خاوند ـ

زما په نامه زر شول د بي بي په ذات زرنيخ شو
زرنـيـخ پـه نـرخ د زرو کـا قـدرت لـري اِله خوشحال

**اِلٰهي** :- (اِ+لا+هِيْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] لُغ : خدا ے پاک ، الله تعالٰی اص : (۱) زما معبود ،خداوند پاک ، اے الله پاک ، اے زما خدايه (۲) د الله پاک د طرف نه ، لکه : " دا الٰهي کار دے " ـ (۳) سو : لوے ، عظيم ، لکه : "الٰهي کاڼے دے " ـ (۴) خدائي ، نېک سړے ، خدا ے جوړے ـ لکه : " هغه الٰهي سړے دے " ـ

الـهٰـي د مـحـبـت درد و فـــغـــان را
په معصوم کنار د نور غوندې جانان را کاظم خان شېدا

**اِلٰهيات** :- (اِ+لا+هـ+يا+تْ) [ع ، اس ، ص] علم ما بعد الطبعيات

**اَلبته** :- (اَ+لْ+بَ+تهٔ) [ع ، ص ، مؤ] (۱) يقيني ، بې شکه ، په حقيقت کښې ، خامخا ، (۲) خو ، ليکن ، لکه :" تهٔ ښهٔ وائې البته زما هم واؤره "

رحمٰن وائي د دنيا چارې فاني دي
الــبــتــه پــه دا خبرو اعتبار کا

**اَلبشاکه** :- (اَ+ل+بُ+شا+که) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ ، وا : ج : البشاکې] نمونه ، نخښه ، معمولي اثر ـ

**اَلبلے** :-(اَ+لْ+بَ+لَے) [اف ،پ (قاموس) اس ،فا ع ، مذ ،وا ،ج : البلي] زاري کوونکے ، عاجزي کوونکے ، خاکسار ، الون بلون کوونکے ـ

**اِلبند** :- (اِ+لْ+بَ+نْ+دْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: البندونه] د ووړې يعني د ګرمۍ د موسم ورشو ـ

**اَلبنګ** :- (اَ+لْ+بَ+نْ+ګ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، (مؤ وا ، البنګه ، ج : البنګې) ] ګونګے ، خاموش ، چپ چاپ ـ

**اَلبيس** :- (اَ+لْ+بي+س) [پ (ب ، خ) س] چڼ ، تکے ، خبره ، ژغ ، غږ ، ګُفت ، وش ، ک ش ، لکه : " هغهٔ خوار البيس هم ونهٔ کړو "

**اَلپ** :- (اَ+لِ+پْ+ [پ (عا) حرف] الف : عام خلک الف ته الپ وائي ځکه چې پښتانهٔ همېشه "ف" په "پ" بدلوي ـ

**ـــــ هېڅ نهٔ لري** :- (اص) لُغ : الف زبر ، زېر ، زَور يا نقطه نهٔ لري ـ اص:

(۱) چې څوک بالکل کنګال او خوار وي۔ د چا سره چې سرهٔ پیسه نهٔ وي۔ (۲) بې اوره بې کوره ، بې عزیزه بې تربوره ، د پوه ماه تُوت ، بې اسرې خوار ، نېستمن ، هغه څوک چې هېڅ قسم ته خپل خپلوان ئې نهٔ وي (۳) د هېڅ پروائهٔ کوونکے ، هر څهٔ ته تیار ، چې د دنیا او د آخرت پروا نهٔ لري۔

**اَلپ ارسلان** :- (اَ + لَ + پْ + اَ + رْ + سَ + لا + ن) [اس ، معر ، مذ ، وا ] لُغ: بهادر زمرے اص : د سلجوقي خاندان بادشاه ؤ ۔ دهٔ ارمینیا او جارجیا فتح کړي وو۔

**اَلپتګین** :- (اَ + لَ + پْ + تَ + ګيْ + نْ) [تر ، اس معر ، مذ ، وا ] یو ترک مریئے ؤ۔ د خپل قابلیت او بهادرۍ په وجه ئې په غزني قبضه وکړه او حکومت ئې جوړ کړو۔ مشهور غازي سلطان محمود غزنوي ددهٔ نوسے ؤ۔

**اَلپته** :- (ا + لَ + پْ + ته) [اف : پ (قاموس) ص] وارخطا ، تنګ تربت،اوتر کوتر،پریشانه،تنګ تربش،هیبت اخستے ، هیبت وهلے

**ـــــ کول** :- (اف) اص ، وارخطا کول ، پریشانه کول ، تنګول ، اوتر کوتر کول، تنګ ترش کول۔

**ـــــ کېدل** :- (اَف) اص ، وارخطا کېدل ، پرېشانه کېدل ، تنګېدل ، اوتر کوتر کېدل

**اَلپُوری**:-(اَ+لْ+پُوْ+رَی) (پ،اس ، معر] په سوات کښې یو کلے دے۔

باز په جاله کښې چا نهٔ دے پېژندلے
د حافظ څهٔ قدر نشته الپورۍ کښې حافظ الپوري

**اَلپوري** :- (اَ + لْ پُو + رِيْ) [پ ، اس ، ص ] د الپورۍ سره نسبت لرونکے ، لکه : '' حافظ الپوري ''۔

**اَلپي الا** :-(اَ+لْ+پيْ+اَ+لا) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ] ډېر خوار ، فقیر ، عاجز ، بې اسرې ، بې وسه بې کسه ، بې کوره بې اوره ، د سپي د لکۍ خوار ، خوار پړک ، د پولۍ پړک ته ناست ، چې پُولۍ په ډانګ را اړوي ، چې نیستي ترې ځاخي ، چې په مېنه غز نهٔ لري ۔ چې سپي قینچي کوي۔ د موټو سپوري ته ناست۔

**ـــــ کول** :- (اَف) اص ، بالکل بې کوره کول ، بې اسرې کول ، بې وسه کول ، ډېر خوارول ، بې کوره بې اوره کول ، د موټو سپوري ته کښېنول۔

**ـــــ کېدل** :- (اَف) اص ، بالکل بې کوره کېدل ، بې اسرې کېدل، بې وسه کېدل ، بې کوره بې اوره کېدل ، ډېر خوارېدل ، عاجزېدل ، د پولۍ پړک ته کښېناستل ، سپي قینچي کول ،

**اِلتجا** :- (ا +لْ + ت + جا ) [ ع ، اس ، مؤ ، وا] غوښتنه ، منت ، زاري، سوال،خواست،ځولۍ غوړول،درخواست ، ارزو ، خواهش ، ارمان

**ـــ کول** :-(اص ) غوښتل ، منت کول ، سوال زاري کول ، ځولۍ غوړول ، درخواست کول ، خواهش ظاهرول ، په عاجزۍ او زارۍ څهٔ خواست کول ، ارمان کول۔

**ـــــ کېدل** :-(اص) غوښتل کېدل ، منت زاري کېدل ، سوال کېدل ، ځولۍ غوړېدل ، درخواست کېدل، خواست کېدل۔

**اِلتفات** :- (ا + اْ + ت + فا + ت) [ ع ، اس ، مذ ، وا] پام ، مهرباني ، مېنه ، اخلاص ، توجه ، نظر ۔

کـه ادنـی الـتفـات اوکـړي له اخلاصه
ماخسته غوندې به ډېر خلاص کړي له بنده علي خان

**اِلتماس** :- (ا + لْ + ت + ما + سْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : التماسونه] سوال،خواست،عرض،منت ، درخواست ، زاري ، دعا ، غوښتنه۔

نـور قلـم مـې پـه خپـل لاس کـړو
مـــا و رب تـــه التمـــاس کـــړو

**اَلتمش** :- (اَ + لْ + تَ + مَ + شْ) [ اس ، معر ، مذ ] په هندوستان کښې د غلامانو د خاندان دویم بادشاه چې نوم ئې شمس الدین ؤ۔

**اِلتوا** :- (ا + لْ ت + وا ) [ ع ، اس ، مؤ ، وا] (۱) تاخیر ، ډېري ، بل وخت ته پرېښول ، ډېل ۔ (۲) ټال متېول ، خبره ځنګول ، خبره ځنډول ، قیصه معطل کول۔ ایسارول ، وخت ته ټیله ورکول۔

**اُلته**:- (اُ + لْ + ته ) [ ه ، ص ] (۱) اپوټه ، پړمخې ، په بل مخ ، اړولے (۲) برخلاف ، پر ترځ ، په څټ ، په ګڅه ، لکه : '' هغه نن پرون راسره اُلته دے'' (۳) بد ، خراب ناړامه ، لکه : '' فلانے ډېر اُلته سړے دے ''۔

**ـــــ کول**:-(اص) (۱) په بل مخ اړول ، پړمخ کول ، بدلول ، کوټ یا واسکټ یا داسې بل څیز په بل مخ اړول ، په څټ کول ، په استر کول۔ (۲) د چا د څهٔ خبرې نه اړول ، د ورکړي بیان نه بدلول ، روش بدلول۔

**ـــــ کېدل** :- (اص) (۱) په بل مخ اوړېدل ، پړمخ کېدل ، بدلېدل ، کوټ یا واسکټ یا داسې بل څیز په بل مخ اړېدل ، په استر کېدل (۲) د چا د څهٔ خبرې نه اړېدل ، د ورکړي بیان نه بدلېدل ، د خپلې وینا نه اوړېدل ، روش بدلول ، په شا راګرځېدل۔

**اُلتي** :- (اُ + لْ + تَي ) [ پ ، اس ، مؤ ، ج ]قې ، کوز کتل ، په ستنه کول ، له مخه کول ، غورځول ، بکۍ ، جارباسل ، چال ، باقۍ

**ـــــ کول** :- (اص ) قې کول ، کوز کتل ، په ستنه کتل ، له مخه کول، جارباسل، غورځول ، بکۍ کول ، چال کول ، باقۍ کول۔

**ـــــ کېدل** :- (اص ) قې کېدل ، له مخه کېدل ، زړهٔ چینجېدل ، زړهٔ کچه کېدل، زړهٔ یشېدل ، بکۍ کېدل ، باقۍ کېدل۔

**اَلتیمېټم** :- (اَ + لْ + تيْ + مي + تَ + مْ) [لا ، اس ، مذ ، وا] د جنګ اعلان ، جګړې ته پټون ټېول ، د جنګ دپاره د تیارۍ خبر ورکول، د مقابلې دعوت، خبردارے ، د څهٔ شرطونو سره اخري اعلان ، چیلنج ، د مقابلې غږ کول۔

**اُلجه** :- (اُ + لْ + جَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اُلجې] (۱) لوټ ، شوکه شُوک ، لېټ ، شیک ، د غنیمت مال ، د چورمال ، د تالان مال۔ (۲) څهٔ څیز لاس ته کول ، څهٔ څیز حاصلول ، ولقه ، څهٔ شے موندل۔

په اُلجه د اوښ د غاړې د جرس دے خوشحال
دا طوفان چې په مغلو باندې ساز شو
پـــه کُشتن پـــه اُلجو هېڅ مه کړه نظر
مرجونا در و مرجان هله اُلجه کړه
چې قبول کاندې د بحر خوني چلې خوشحال

**ـــــ اَخستل** :- (اص) (۱) د شوکې مال اخستل ، د لوټ دولت تر لاسه کول ، د غنیمت مال موندل ، (۲) په څهٔ څیز بونګه اخستل ، د تېښتولې یا پټ کړې څیز په سر نغدې اخستل۔

**ـــــ کول** :- (اص) لوټ کول ، شوکول ، د شوکې مال تر لاسه کول۔

**په ـــــ کښې** :- (اص) (۱) په شوک کښې په لوټ کښې ، په چور کښې (۲) څهٔ خبره په تنازعه کښې ، داسې خبره چې فېصله ئې نهٔ وي شوې ۔ قضیه یا کشاله کښې ، په جګړه کښې ، په جد کښې ، په دومیرۍ کښې ، په مُربنه کښې۔ (سو)

**ـــــ ګیر** :- (اص ) (۱) شوک مار ، داړې مار ، لوټ مار ، غل ، (۲)معامله جن

**اَلچه** :-(اَ+لْ+چه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : الچې] و ـ الاچه

**اَلڅپک** :- (اَ+لْ + ثْسَ + پَ + ک ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] نرۍ واؤره ، چې لړه شان په مزکه پرته وي ، نرے پشم یا پُونه یا پونه۔

**اَلحاج** :- (اَ + لْ + حا + ج) [ع ، اس ، ص ، مذ ، وا] حاجي ، چې د بيت الله شريف زيارت ئې کړے وي۔

**اِلحاد** :- (ا + لْ + حا + دْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] د خداے تعالىٰ نه انکار ، مُلحد کېدل ، دين پرېښول ، د خپل دين نه اوړېدل ، کفر ، د نېغې لارې نه اوښتل۔

هره چار چې په تقوىٰ په فتوىٰ نۀ وي
زۀ ئې حکم پـه الحاد په ارتداد کړم خوشحال

**اِلحاق** :- (ا + لْ + حا + قْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] يو بل سره تړون ، يو د بل سره شاملېدل ، يو ځاے کېدل۔

**ـــــ کول** :- (اص) يو څيز د بل سره يو ځاے کول ، يو بل سره ګډول ، يو بل سره اننبلول ، يو بل سره جختول يا تړون کول۔

**ـــــ کېدل** :- (اص) د يو څيز د بل سره يو ځاے کېدل ، يو بل سره خاص کېدل، يو بل سره تړلے کېدل۔

**اِلحاقي** :- (ال + حا + قِيْ) [پ تر ، ص] تړلے شوے ، يو ځاے کړے شوے ، لکه : '' الحاقي واؤ '' په وشۀ کښې ''و'' الحاقي دے۔

**اِلحان** :- (ا + لْ + حا+ ن) [ع ، ص ، مذ] خوش اوازي ، په خوږ اواز لوستل يا سندرې وئيل۔

مـطـربـان دې سرودونه درتـه کاندي
تۀ ئې خوښ په صوت او غاړه په الحان شه خوشحال

**اَلحذر** :- (اَ + لْ + حَ + ذَ + رْ) [ع ، د خبرداري کلمه] پام ، خبردار ، هوشيار ، ځان ساته ، الامان۔

الـحذر اشـنـا د مـينـې د دريـابـه
خلقې په دې درياب کښې شورې غرقابه علي خان

**اَلحمد** :- (اَ + لْ + حَ + مْ + دْ) [ع ، اس] ټوله ثنا ، ټول صفت ، ټول ستائش ، ټول تعريف ، ټوله ستاينه ، ټول طاقتونه ، ټولې لويې ، ټولې ثناګانې ، ټول حمدونه

**اَلحمدُ لله** :-(اص) (۱) ټول ثنا صفت خاص الله پاک لره دے۔ (۲) د شکر ويستو او د خوشحالۍ او ارام په موقع مسلمانان الحمد الله وائي

**اَلحمرا** :- (اَ + لْ + حَ + مْ + را) [ع ، اس ، معر] لُغ : سور رنګے ، اص : (۱) د مسلمانانو چې کله د سپين په ملک حکومت ؤ نو په غرناطه ښار کښې ئې الحمرا نومې ښکلے محل ساز کړے ؤ چې نخښې نښانې ئې اوس هم شته۔

**اَلخ** :- (اَ + لَ + خ) [پ (سو) کلمه] (۱) وښ ، ويش ، د درد او تکليف په وخت چې کوم اواز د خولې نه خېژي۔ (۲) ع۔ د الىٰ اخره مخفف دے ۔يعني تر اخره پورې۔

**اِلزام** :- (ا + لْ + زا + مْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : الزامونه] تور ، تهمت ، بهتان۔

**ـــــ لګول** :-(اص) چا پورې تور پورې کول ، په چا تهمت لګول ، قصور وار ښائل ، په چا اعتراض کول ، څوک بدنامول ، په چا دروغ تړل ، په چا ناحقه الزام لګول۔

**ـــــ لګېدل** :-(اص) چا پورې تور پورې کېدل ، په چا تهمت لګېدل په چا اعتراض کېدل ، د چا بدنامېدل ، په چا الزام لګېدل ، په چا دعوې کېدل۔

**اُلس** :- (اُ + لْ + سْ) [پ ، اس ، مذ ،وا ، ج : اُلسونه يا اُلسينه] اولس، خلک ، مخلکو ، عوام ، د خلک ټولے ، لکه : ''اُلس ناقلاره دے''

**اَلست** :- (اَ + لَ + سْ + تْ) [ع، سواليه کلمه] لُغ : ايا زۀ نۀ يم؟ دا د قرآن شريف هغه ايت ته اشاره ده چې کله خداوند پاک روحونه پيدا کړل۔ نو سوال ئې ترې وکړو چې اَلَسْتُ بِرَبِّکُمْ ايا زۀ ستاسو رب نۀ يم ؟ اص : د شروع نه ، د ازل نه ، د اولې ورځې نه۔

که بادشاه ئې په زندان کا غم ئې نشته
د آزادو آزادي ده لـــه الـســتــه خوشحال

**اَلستي** :- (اَ + لَ + سْ + تِيْ) [پ تر ،ص] د الست سره تعلق لرونکے ، (۱) د شروع نه ، د اوله ، د ازله ۔(۲) پاکه ، د خداے تعالىٰ دپاره ، خدائي ، حقيقي۔

کرلاټې لا نور شراب نوشلي نۀ دي
دا مستي واړه په جام الستي ده خوشحال

مينه الستي شته ، لباسي شته ، نفساني شته خوشحال

**اُلسي** :-(اُ+لَ +سِيْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا] د اُلس سره تعلق لرونکے ، عام سړے ، د عوامو نه يو کس ، د وطن سړے ، ملکي وطنيان۔

**ـــــ جرګه** :- (اص) عوامي جرګه ، قامي جرګه ، د عامو خلقو جرګه

**ـــــ لار** :- (اص) باچائي لار ، قومي لار ، لويه لار ، شاه راه۔

**ـــــ لښکر** :- (اص) د عوامو لښکر ، کلي وال لښکر ۔ قامي لښکر، بې تربيته او بې تنظيمه فوځ۔

**ـــــ مشر** :- (اص) قامي مشر ، عوامي ليډر۔

**اَلسي** :- (اَ+لْ+سِيْ) [ه ، س : اتسي ، اس ، مؤ] يو قسم تخم چې تېل ترې وُځي۔

**اَلسپشن** :- (اَ + لْ + سپ + شَ + نْ) [انګ ، اس ، ص ، مذ] د السپشيا د علاقې د سپو يو ذات۔

**اَلش** :- (اَ + ل + شْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] بدل ، معاوضه۔

**اَلعريش** :- (اَ+لْ + عَ + رِيْ + شْ) [ع ، اس ،معر ، مذ] د مصر يو ښار

**اَلعطش** :- (اَ+لْ + عَ + طَ + شْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] تنده ،د تندې نارې، تږے والے۔

چـې هـر دم د الـعطش نـــارې وهينه
په ساعت ئې د مقصود په روداو بۀ کړې خوشحال

**اَلغاسه** :- (اَ + لْ + غا + سَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) د ډوډۍ يوه ټکړه چې د لوړې لرې کولو دپاره خوړلے شي۔ (۲) وارخطا ، پرېشانه ، متاثر۔

**ـــــ لوئېدل** :-(اَف) اص،د څۀ حادثې په وجه وارخطا کېدل،د څۀ واقعې له کبله پرېشانه کېدل يا ارپانېدل ، د څۀ واقعې نه متاثر کېدل۔

**اَلغاؤ تلغاؤ** :-(اَ+ لْ + غا + ؤ + تَ + لْ + غا + ؤ) [پ، اس ، ص ، مذ] ګړېړ، اړے ګړے ، شور ژوږ ، بد انتظامي ، هنګامه ، ژړا فرياد ، افراتفري ، باچاګردي ، بدنظمي۔

**اَلغتان** :- (اَ + لْ + غَ + تا+ نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ (مؤ، وا: الغتانه ، ج : الغتانې)] ناړامه او ضدي هلک ، ورانکارے هلک ، شيطان ووړکے ، په يو ځاے نۀ کښېناستونکے کړاچے ، شوخي کوونکے هلک۔

**اَلغ خان** :- (اَ+لَ + غْ+ خا + ن) [اس ، معر ، مذ] د خوارزم يو مشهور بادشاه چې د ستورو د علم دپاره ئې عالمان راغونډ کړي وو۔

**اَلغرض** :- (اَ + لْ + غَ + رَ + ضْ) [ع ، کلمه] عقوبت ، غرض دا چې ، لنډه دا چې ، مطلب دا ، خلاصه دا چې۔

الغرض چې برابر بادشاه له لاړ شۀ
په سلام بادشاه ته او دربدۀ خاموشه عبدالغفار خان

**اَلغو تلغو** :-(اَ + لْ + غو + تَ + لْ + غَو) [پ ، اس ص ، مذ] (و ـ الغاؤ تلغاؤ۔)

**اَلغوزا** :- (اَ + لْ + غو + زا) [+ع ، اس ، مؤ ، وا ، ج : الغوزې] يو قسم برغې شپېلۍ يا بانسرۍ۔ داساز په سندهـ کښې زيات مقبول دے

**اَلغه** :- (اَ + لْ + غه) [اف : پ (قاموس) ع : حلقه ، اس ، مؤ ، وا ، ج: الغې] حلقه ، دا ټکے پښتو کړے شوے دے۔

**ــــ کول** :- (اَف) اص ، د چا نه په ټګۍ فائده اوچتول ، د چا په غلولو ځان ته ګټه رسول۔ ځوک په چلول راګیرول او خپل غرض ترې حاصلول۔

**اَلغیاث** :- (اَ+ لْ+ غ+ یا + ثْ) [ع ، ص ، مذ ، وا ] ارمان ، ګیله ، شکوه ، شکایت ، د افسوس نعره ، د غم چغه ، هائے افسوس۔

زۀ رحمٰن مدام د یار په رضا درومم
یار په خپله رضا تلۀ دا الغیاث

**اَلِف** :- (اَ+لِ+ فْ) [ع ، حرف] د (ا) تلفظ ، د ابجدو اول حرف۔ د الف بې پټې اول توری۔

په زرګونو کتابونه ملا بولي
الف بس که ئې غرض مسلماني ده خوشحال

**ــــ اَلله** :-(اص ) (۱) یکې یواځې ، ګوښې ، د الف په شان بې ملګریه (۲) موتازه ، غریب ، لاچاره ، بې وسه ، بې بنده بې پیوند ه۔

**ــــ کېدل** :- (اص) (۱) ایغ نیغ کېدل ، نیغ ودرېدل ، (۲) د اس په دوو پښو اودرېدل ، (۳) لنډ لغړېدل ، بربنډېدل ، ګوته لکۍ کېدل ، لغړسوغړ کېدل (۴) لوچ لغړ کېدل۔

**ــــ مقصوره** :- (اص) داسې الف چې مد پرې نۀ وي۔زبر زېر یا پېښ پرې وي ۔لکه اَسلم ، اِسلام ، اُلفت او داسې نور۔

**ــــ ممدوده** :- (اص) داسې الف چې مد پرې باندې وي۔لکه : ام ، ادم۔او داسې نور۔(دا د عربۍ د قواعدو مطابق نۀ دے)

**د ــــ تورے** :- (اص) کنايةً الله پاک ، په حقیقت پوهېدل۔

هغه ځوک چې د الف په توري پوهه شول
نور په خولۀ د نورو تورو شماره نۀ کا خوشحال

**اَلف بې** :- (اَلف+ بې) [ع ، اس] (۱) توري ، ټکي ، حروف تهجي ، د الف بې پټې۔(۲) ابتداء ، شروع ، لاس پورې کونه ، آغاز۔

**ــــ نۀ کول** :- (اص) هېڅ نۀ وئیل ، خاموشه پاتې کېدل ، البیس نۀ ایستل ، په څۀ خبره یو ټکے نۀ وئیل ، ګُم سُم پاتې کېدل ، چڼ ئې نۀ ختل ، غږ ئې نۀ ختل ، په ژبه لل کېدل ، کش نۀ کول۔

**ــــ وئیل** :- (اص) ابتدا کول ، شروع کول ، اول لاس پورې کول۔

هغه دم ئې الف بې ورته په لاس کړۀ
په تعلیم ئې د ګدا جمع حواس کړۀ حمید

**په ــــ نۀ پوهېدل** :- (اص) په هېڅ نۀ پوهېدل ، بېخي جهالت ، سکوټه کم عقلتیا ، په هېڅ شک رک نۀ کېدل۔

**اَلفاروق** :- (اَ+ لْ+ فا + رو + ق) [ع، اس ، ص ، مذ ، وا] لُغ : فرق کوونکے ، اص ۔(۱) د حضرت عمر رضی الله عنه لقب۔(۲) د حضرت عمر^رض^ په ژوند لیکلے شوے کتاب ۔ کوم چې شبلي نعماني لیکلے دے ۔ ددې کتاب پښتو کښې هم ترجمه شوې ده۔

**اَلفاظ** :- (اَ+ لْ+ فا+ ظْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا: لفظ] لفظونه ، توري ټکي ، کلمې ، خبرې۔

ددې دوارو معنٰی نشته
تش الفاظ دي لکه لا علي خان

**اُلفت** :- (اُ+ لْ+ فَ+ تْ) [ع، ص ، مذ ، وا ، ج : اُلفتونه] مینه ، محبت ، دوستي ، اشنائي ، مهرباني

**ــــ کول** :- (اص ) مینه کول ، محبت کول ، مئینېدل ، دوستي جوړول ، مهرباني کول ، په چا رحم کول۔

**ــــ لرل** :- (اص) هغه ځوک چې د مینې ډک زړۀ لري۔زړۀ کښې محبت لرل ، عشق او درد لرل۔

**اَلفتح** :- (اَ+ لْ+ فَ+ تَ+ حْ) [ع ، اس ، معر] د فلسطین د ازادۍ حاصلولو دپاره د عرب مجاهدینو یو ټولے۔

**اَلفتاح** :- (اَ+ لْ+ فَتْ+ تا + حْ) [ع ، اس ، ص] د خداوند پاک په اسماء حسنٰی کښې یو نوم ، چې لفظي معنٰی ئې د زیات خلاصوونکي ډېر لرې کوونکي یا بېرته کوونکي ده۔

**اَلفقر فخري** :- (اَ+ لْ+ فَ+ قْ+ رُ+ فَ+ خْ+ رِيْ) [ع ، اص] د رسول پاک صلی الله علیه وسلم هغه مبارکه وینا چې هغوي وائ: "په فقر زما فخر دے"۔

**اَلف لیلا** :- (اَ+ لِ+ فْ+ لَي+ لا) [ع ، اس ، مؤ ، وا] لُغ : زر شپې ، اص : (۱) د عربۍ ژبې د قیصو یو مشهور کتاب چې په نورو ګڼو ژبو کښې ئې ترجمې شوي دي۔دې کتاب کښې یو دپاسه زر قیصې دي۔(۲) سو ، لغړ ، لوڅ لغړ۔

**اَلقاب** :- (اَ+ لْ+ قا + بْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : لقب] (۱) د حاکم وخت د طرف نه د یو سړي د خدماتو په وجه هغۀ ته څۀ وصفي نوم (خطاب) ورکولے شي ۔لکه " ستارۀ پاکستان ، ستارۀ جرات ، او نور داسې ۔ (۲) په خط و کتابت کښې اعزازي الفاظ ۔لکه :"جناب ، حضور فېض ګنجور ، قبله و کعبه ، او نور داسې القاب و اداب۔

**اَلک** :- (اَ+ لَ+ کْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : الکان] هلک ، ووړکے ، کړاچے ، زنګے ، د کم عمر ماشوم ، کمکے۔

**اَلک** :- (اَ+ لَ+ کْ) [پ (وز،ب ،خ) ص، مذ ، وا ، (مؤ ، وا ، الکه ، ج: الکې) ] سپک چې دروند نۀ وي۔چې وزن ئې کم وي ، الکے

**اَلکاري** :- (اَ+ لْ+ کا + ري) [پ (خل) ، ص ، مؤ ، ج] ناري سورې ، چغې ، شور زوږ۔کوکارې ، القارې۔

**ــــ وهل** :-(اص ) چغې وهل ، ناري سورې وهل ، شور زوږ کول ، کوکارې ایستل ، تنلې وهل ، جلۍ ایستل ، القارې وهل ، جغارۍ ایستل۔

**اَلکوانه** :-(اَ + لَ + کَ + وا+نه ) [ پ ،اس ، ص ، مؤ ، وا ] (۱) هلکوانه ، الکوانه، وړوکوالے ،الکتوب ، کچه عمر ، وړوکتوب زنګتوب، وړیکتوب،د الکوالي عُمر،ماشومتوب،ماشومتیا(۲)سادګي،ناپوهي

**اَلکه** :- (اَ + لَ+ کَه) [پ (محلي ، چودهوان) اس ، مؤ ، وا] جینۍ ، لکه : "زما الکه بیماره ده"۔

**اَلکۍ ژبه** :- (اَ+ لْ+ کۍ + ژ+به) [اف : پ (قاموس) اس ،ص ، مؤ] حلقي ژبه ، وړه ژبه ، د حلق ژبه ، ورکوټې ژبه ، کمکۍ ژبه۔

**ــــ لوېدل** :- (اَف) اص ، لُغ : ورکوټې ژبه پرېوتل ، القۍ ژبۍ پرېوتل۔اص : ډېرې خبرې کول ، زیات ژغبدل۔

**اَلکېش** :- (اَ+ لْ+ کِيْ + شْ) [پ، اس ، صو] سپے چا پسې کول ، سپې ته اوس اوس یا کیش کیش کول په دې غرض چې په چا حمله اوکړي۔سپے پاره کل، سپے اچیش کول ، سپے کیشکارل۔

په الکیش الکیش ئې ستړے کړم ، ښکار نۀ کا خوشحال

**اَلګ** :- (اَ+ لَ+ ګْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] یو قسم نرے کانے چې لوښې ترې سازولے شي۔

**اَلګډ** :- (اَ+ لْ+ ګَ+ ډْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : الګډې] خوړ ، د سېلاب یا باراني اوبو لاره ، توئے۔

په ځنګلو کښې چې ګرځي
په الګډو کښې چې برځي
خوشحال

**اَلګوډے** :- (اَ+ لْ+ ګو + ډے) [پ ، اس ، مذ ] (و ــــ ارګوډے)

د چیندرو په کورکو کښې الګوډے دے
ژوند په هر قدم کوږکې ده ډېر په خیال ځه رسا

**په ــــ تلل** :-(اص) په یوه پښه ټوپونه وهل،په ارګوډې تلل،اډے ګوډے۔

**اَلګه** :- (اَ+ لَ+ ګَه) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج: الګې] شنډه ،

چې بچے نۀ راؤړي۔

**الله** :- (اَ + لْ + لا + ه) [ ع ، اس ذات ، مذ ، وا ] پاک الله ، خدا ے تعالیٰ خالق د دوؤ جهانو ۔

پـه دا ساه نیشته وېسا
هــر دم تـۀ وایــه الله — خوشحال

ـــــ **الله کول** :- (اص) (۱) دعاغوښتل ، خدا ے یادول ، ذکر کول ۔ (۲) دنیاوي کارونو ته شا کول ، او الله تعالیٰ ته مخ کول۔

ـــــ **الله وئیل** :- (اص) (و ـــ الله الله کول)

پـــه الـلـه الـلـه وئـــیـــلو
تاخت تراج کا درست محلت — خوشحال

**الله اکبر** :- (اَللّٰهُ + اَ + کْ + بَ + رْ) [ ع ، کلمه تکبیر ] لُغ : خدا ے پاک ډېر لو ے د ے۔اص : (۱) د تکبیر کلمه چې نمانځه کښې د هر رکن د شروع کېدو په وخت وئیلے کېږي ۔ تکبیر تحریمه ۔ (۲) د ډېرې حېرانۍ او تعجب کلمه ، (۳) دا انقلابي نعره ده ، د غازیانو نعره ده۔نعرۀ تکبیر ، د جنګ نعره ، (۴) د ذبحې یا ښکار په وخت الله اکبر وئیلے شي۔

په یوۀ زمان کښې څۀ قدرت ښکاره کا
څـۀ قـادر د ے تـوانـا الـلـه اکـبـر — خوشحال

**الله بـاش** :- (اَللّٰه + بـا + شْ) [ پ تـر ، اس ، مـر ، مـذ ، وا ] (۱) د ملاقـات پـه وخت سلام ، سترې مشـې ، مصـافحه ، (۲) تـادي ، تلوار ، شاباشـے ، د جنګ په مېدان د مړانې دپاره غږ کول ، افرین وئیل۔

ځان مې ورک کړو د دلبر په الله باش
بیا مې نۀ موند په تدبیراؤ پـه تلاش — علي خان

**الله پاک** :- (اص ،ص ، خدا ے پاک ، الله ،د قوتونو خاوند ،معبود برحق ، قادر مطلق

**الله یار** :- (اَللّٰه + یا + رْ) [ پ ،ص ] (۱) په مخه دې ښه ، د خدا ے په امان ، خدا حافظ ، دا کلمه په بلوچستان کښې په مخه ښه وئیلو دپاره استعمالېږي۔ (۲) یو نوم۔

**الله هو** :- (اَ + لْ + لا + هُوْ) [ ع ، کلمه ] د صفت کلمه ، معنې ئې دي چې بلا ثوک نشته۔الله هم هغه یو د ے۔د ذکر کلمه۔

**الله هو** :- (اَ + لْ + لا + هُو) (پ ، تر ، ص ] د ماشومانو اودۀ کولو دپاره د مور سندرې۔لکه : '' اللهو ، للې للو ، للې للو ، په بره کوځه مه راځه په کوزه کوځه رو ، اللهو اللهو ، اللهو اللهو غوندے مې داسې اودۀ د ے لکه ګل په نندارو ، لکه : ''پنډ د پتاسو ''

**الله جلاله** :- (اَ + لَ + له + جَ + لَ + لَه) [ اف : پ (قاموس) اس ] (۱) کوښښ ، (۲) تلوار ، تېزي ، بېړه ، اللې تللې ، تادي۔

**اَللے تللے** :- (اَ + لَ + لې + تَ + لَ + لې) [ پ ، ص ] (۱) پرېشانه ، بې سرو سامانه ، مایوسه ، په تکلیف کښې ګېر ، مصیبت زده ، دا د ښېرې او بد دعا په ډول استعمالېږي۔لکه : '' خدا ے تعالیٰ دې اللے تللے کړه ''۔ (۲) ځینې وخت د افسوس دپاره هم استعمالېږي لکه وائي : '' افسوس د ے هغه څنګه اللے تللے د ے '' (۳) یکې یواځې ، بې اسرې ، لکه : '' هغه اللے تللې پاتې شو''

**اَلم** :- (اَ + لَ + مْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : المونه ] (۱) عالم ، خلق ، (۲) الم حلم یا المم ، یو قسم بوټے د ے چې تخم ئې د دارو په طور استعمالېږي۔

زۀ که ستا په غم کښې ژاړمه ګرم نۀ یم
ژړوف راسـره څـۀ تـــه الـمـونـه — رحمٰن بابا

**اَلم** :- (اَ + لَ + مْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : المونه ، المه ] رنج و غم ، فکر ، پرېشاني ، تکلیف۔

نۀ چې زړۀ زما یواځې په غم اوچاؤد
ډېر عالم سره په درد و الم اوچاؤد — علي خان

د الم مې هېڅ اَلم سره سم نۀ د ے
کـــه لـیـدلي دي هـزار المه ما
ګور به هم په ژړا سر کړم که ئې وروړم
زۀ خوشحال د زړۀ دا هومره المونه — خوشحال

**اَلماری** :- (اَ + لْ + ما + رِی) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ] د لرګي یا اوسپنې ولاړ صندوق چې تختې په کښې لګېدلې وي ۔ کتابونه یا نور ځیزونه په کښې کښېښودلے شي۔ارماری (سو)

**اَلماس یا الموس** :- (اَ + لْ + ما + س یا اَ + لْ + مو + سْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : الماسونه ] (۱) هېره ، سپین لعل (۲) اص : نشتر ، د شیشې پرېکولو قلم ، الماش ، تېرۀ چاړۀ۔(۳) اکثر د ښځو نوم۔

فېروزه الماس یاقوت لعل له کانه
لـه دریـابـه وکـاږي ګوهر زر — خوشحال

تـېـرۀ تېغ د طـبـعیت مـې ځکه پخ شو
د زړۀ سر مې ستا د وروځو الماس واخست — علي خان

**اَلماسي** :- (اَ + لْ + ما + سِيْ) [ پ تر ص ] د هیرې په رنګ ، د هیرې ، د الماس ، د الماس سره تعلق لرونکے۔

**اَلمان** :- (اَ + لْ + ما +نْ) [ ع ، اس معر ، مذ ] جرمني ، د جرمني ملک

**اَلماني** :- (اَ + لْ + ملا + نِيْ) [ ع ، اس ، ص ] المان ، یعني جرمني سره تعلق لرونکے۔

نۀ په طمع په امید نۀ شرم ترس وه
د لښکر مې سـر رشته الماني ده — خوشحال

**اَلم سور** :- (اَلَم + سُو + رْ) [ اف : پ (قاموس) ص ] (۱) بې صبري ، حرص ، (۲) د ماشومانو یوه لوبه (۳) شور ژوړ ، ورانے۔

ـــــ **اَچول** :- (اف) اص ، ورانے کول ، شور ژوړ کول۔

ـــــ **اخیستل** :- (اَف) اص ، بې صبري کول ، حرص کول ، لالچ کول

**اَلم سُورے** :-(اَلَم + سُوْ + رَے) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، ج : الم سُوري] (۱) حرص ناک ،لالچ کوونکے،لالچي ، حرصي ، وړ سترګے، تږیا ، ارواوړے ، (۲) وران کارے ، شېطان ، شریر، شرارتي۔

**اَلم غلم**:-(اَلَم + غَ + لَ + مْ) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ] (۱) فسادي ، فساد کوونکے ، فریبي ، حیله باز ، دوکه باز ، حیله ساز ، حیله جُو ۔ (۲) دروغ ربنتیا ، ګډې وډې ، هغه دغه ، اخواد ېخوا۔

ـــــ **کول** :- (سو) اص ، (۱) په غږېدلو سترګو ، د یو ځیز غائبول ، څۀ ځیز په رڼا ورځ پټول ، د وینبې مور نه بچے تبنتول ، د سترګو نه رانجۀ پټول (۲) چل ول کول۔

**اَلم نشرح** :- (اَلَم + نَ + شْ + رَ + حْ) [ ع ، کلمه ] لُغ : ایا نۀ وه چا کړې مونږ ؟ اص (۱) د قرآن شریف سورة (۲) واضح ، ښکاره ، په ډاګه څرګنده ، لکه : '' دا خبره الم نشرح ده۔'' متل : '' الم نشرح هغه الم نشر ح د ے خو خولۀ د مُلا عثمان نۀ ده ''۔

ـــــ **کول**:- (اص) پرانستل ، واضح کول ، ښکاره کول ، څرګندول ، په ډاګه کول ، ظاهرول ۔

ـــــ **کېدل** :- (اص) (۱) پرانستلے کېدل ، واضح کېدل ، ښکاره کېدل ، څرګندېدل ، ظاهرېدل ، په ډاګه کېدل (۲) شرمېدل ، سپکېدل ، (سو)

**اُلموري** :-(اُ + لْ + مو + رَي) [ اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ] و ـ اُرمولے

**اَلنج** :- (اَ + لَ + نْ + ج) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] یو قسم لویه وُنه ده چې سپین ګُل نیسي۔

**اَلنګه** :-(اَ + لَ + نْ + ګَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : النګې] دېوال ، ، النګ ، لوړے اوچت ، ګرنګ (سو)

**اُلو** :- (اُ + لُو) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : اُلوګان] (۱) ګونګے ، ګُنګ ، کُنګ (۲) اص : بې وقوف سړے ، احمق سړے ، کم عقل ، بُدو ، لکه : '' هغه څۀ اُلو دے ''.

**ـــــ جوړول** :- (اص) د چا نه بې وقوف جوړول ، خاړې جوړول ، شاړې جوړول

**اَلوا** :- (اَ + لْ + وا) [پ ، ع : حلوا ، اس ، مؤ] لُغ : حلوا ، خوږ څیز ، وربشه ، روشه، اص : اسان کار ، نرم کار ، سوکه ، کار.

**اَلوابوتے** :- (اَلوا + بُو + تَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] د شګو د علاقې یو قسم نرې وابنۀ چې نرم ازغي لري.

**اَلوائۀ** :- (اَ + لْ + وا + ئۀ) [پ ، ص ، مؤ] (۱) الوائۀ ، د مارغۀ پورته خاتۀ ، مخ په بره خاتۀ (۲) د الوتکې اوچتېدل ، پرواز کول (۳) د اوبو په ګرمېدو سره د براس په شکل کښې اوبۀ الوتنه (۴) د یو څیز ناڅاپه غائبېدل.

**ـــــ کول** :- (مص تر) پورته ختل ، پرواز کول ، اسمان ته اوچتېدل.

د مرغه ئې که وزر شته الوائۀ کا

څۀ په دور لکه باز هسې خاتۀ کا خوشحال

**اَلواد** :- (اَ + لْ + وا + د) [پ (ما) ع : اولاد ، اس ، وا ، ج : الواده یا الوادونه] اولاد ، بال بچ ، زامن لونړه ، بچي ، زوے ، لور ، نسل زؤزاد ، پُونګ ، پخ پیداوښ.

**اَلواک** :- (اَ + لْ + وا + ک) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) نظر ، دید (۲) لواړ ، شوائے

**ـــــ تېرول** :- (اص) لواړ تېرول ، ثابت خوړل ، شوائے تېرول ، په څۀ څیز شخوند نۀ وهل ، ښویه تېرول ، سالم تېرول.

**ـــــ تېرېدل** :- (اص) لواړ تېرېدل ، ثابت خوړلے کېدل ، شوائے تېرېدل ، ښویه تېرېدل ، سالم تېرېدل.

**اَلوان** :- (اَ + لْ + وا + نْ) [ع ، اس ، ص، مذ ، ج، وا : لون] لُغ : رنګونه ، اص : د سور رنګ رخت یا کپړه یا ټوکے.

**ـــــ اَلوان** :- (اص) قسماقسم ، رنګ په رنګ ، توک توک ، توکې توکې ، رقم رقم.

د وړاندې ښنې درته یو خوان دے

نـعـمت ئې ګـوره الوان الوان دے خوشحال

**اَلواني** :-(اَ+لْ+وا+نِيْ) [پ ، ص] سور رنګې ، چې رنګ ئې سور وي

**اَلوبل** :- (اَ+ لُو + بَ + لْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] زلقېدونکے ، چڼ کېدونکے ، تابناک ، پړقېدونکے.

**اَلوت** :- (اَ + لْ + وَ + ت) [پ ، حمص] الوائۀ ، په هوا کښې تلۀ ، ورتنه ، پرواز ، ، وراتۀ ، د زمکې نه مخ په پورته تلل ، الوتنه.

**ـــــ کول** :- (مص تر) (۱) الوتل ، ورتل ، پرواز کول ، د زمکې نه مخ په پورته تلل، په هوا تلل (۲) د څیز نه براس جوړېدل یا ختل ، تبخیر

**اَلوتکه** :-(اَ+ لْ + وَ + تَ + کَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : الوتکې] هوائي جهاز ، جوز ، طیاره ، لکه:'' د دښمن الوتکه وتښتېده ''.

**اَلوتل** :- (اَ + لْ + وَ + تَ + لْ) [پ ، مص لا] لُغ : ورتل ، ورزېدل ، په هوا تلل ، پرواز کول ،په هوا کښې ګرځېدل ،اص : (۱) غائبېدل ،د نظر نه پناه کېدل، ورکېدل. (۲) د څۀ څیز نه ټکړه بېلېدل ، د څۀ څیز حصه په زور جدا کېد ل، (۳) خرڅ کېدل ، ختم کېدل ، خوړلے کېدل ، بې برکتې راتلل (۴) ډېر په تُندی تلل ، تېز تلل ، چاخ چابک تلل ، تند تلل ، چاخ چاخ تلل ، په بیړه یو ځاے پرېښول (۵) څۀ خبره مشهورېدل (۶) سخت غصه کېدل ، قهرېدل ، (۷) مستي کول ، د مستئ له کبله نخرې کول (۸) د څۀ څیز رنګ پیکه کېدل یا الوتل (۹) د نشې په وجه په خیال کښې په هواکښې ګرځېدل (۱۰) د براس په وجه د اوبو غائبېدل (۱۱) ترتیبدل (۱۲) لړې پاڅېدل. ما : والوت ، حا : الوزي ، ا : وابه لوزي ، امر : والوزه.

**باد ـــــ** :- (اص) لُغ :هوا الوتل یا ورتل، اص : (۱) څۀ خبره مشهورېدل د بیمارۍ عام کېدل ، وبا راتلل (۲) رواج موندل ، فېشن کېدل

**په نشه کښې ـــــ** :- (اص) لُغ : د زیاتې نشې په وجه په خیال کښې په اسمان کښې ګرځېدل ، اص : زیات مغروره کېدل ، کبر کول ، دولت یا طاقت باندې غاوره کېدل.

**رنګ ـــــ** :- اص ، لُغ : رنګ پیکه کېدل یا ختمېدل ، اص : د یرې یا تعجب په موقع د څهرې رنګ بدلېدل ، اک بک پاتې کېدل ، اریان دریان کېدل ،

وارخطا کېدل ، زیړه ګونه تښتېدل یا تلل.

**د بل چا په ځانګونو ـــــ** :- اص. لُغ : د بل په وزرو الوتل ، اص (۱) د بل په ډاړ ګرځېدل ، د بل چا پـه وجه ځان په څۀ کښې شمارل ، (۲) د موړې په زور ټوپونه وهل.

**دبل په وزرو ـــــ** :- اص. (و ـــــ د بل په ځانګونو الوتل)

**اَلو تلے** :- (اَ+ لْ + وص + تَ + لَے) [پ ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : الوتلي] ورتلے ، الوتے ، ورزېدلے ، په هوا کښې تللې.

چې درد و غم کښې زما غلیم دے

را الـوتـلے د نـفرت نـسیم دے خوشحال

**اَلوتنګ** :- (اَ+ لْ + وَ + تَ + نْ + ګ) [اف ، پ (قاموس) حمص] ورتل الوتنه ، پرواز ، ورتنه ،

**اَلوتنه** :- (اَ + لْ + وُ + تَ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ الوت

**اَلوتونکے** :- (اَ+ لْ + وَ + تُو + نْ+کَے) [پ ، اس ، فاع ، مذ ،وا ، ج: الوتونکې] الوت کوونکے ، ورتوونکے ، ورزېدونکے ، په هوا کښې تلونکے ، د زمکې نه پورته تلونکے ، الوتونے.

**اَلوته** :- (اَ+لْ+ وُ + تۀ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـــــ الوت.

**اَلوتے** :- (اَ+ لْ + وَ + تے) [پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : الوتي] ورتلے ، الوتلے ، په هوا شوے ، د زمکې نه مخ په پورته تللے.

**اَلوتي** :- (اَ+ لْ + وَ + تي) [پ (ب، خ) اس ص ، مؤ ، ج] کاواکې ، سرسامي ، بیمار چې د بیمارۍ په دوران کښې کاواکې وائي. سرسامي خبرې.

**ـــــ وئیل** :- (اص) اوتې بوتې وئیل. کاواکې وئیل ،بې مطلبه خبرې کول ، ګډې وډې وئیل. بې موجبه ژغېدل.

**اَلوڅه** :- (اَ + لو + څَۀ) [اف ، پ (قاموس) ص ،مؤ] پټ ، په ډډه ، په څنګ ، یو طرف ته ، یو خوا ته ، یو لورې ته ، یو اړخ ته.

**ـــــ کول** :- (اف) مص مت. پټول ،په ډډه کول ،په څنګ کول ، یو طرف ته کول ، یو خوا ته کول ، یو لورې ته کول ، یو اړخ ته کول ، په ترڅ کول.

**ـــــ کېدل** :-(اف) مص لا. پټېدل،په ډډه کېدل،په څنګ کېدل،یو طرف ته کېدل، یو خوا ته کېدل ، یو لورې ته کېدل ، یو اړخ ته کېدل.

**اَلوداع** :- (اَ+ لْ + و + دا + ع) [ع ، اس ، مذ] رخصت ، په مخه دې ښه ، خداے ته سپارلے ، خدا حافظ.

**ـــــ کول** :- (اص) رخصتول ، په مخه ښه وئیل ، خداے تعالیٰ ته سپارل ، د چا په سفر تلو یا د ملازمت ختمېدو په وخت آخري لیدل کتل کول ، خداے په اماني ورته وئیل.

**ـــــ وئیل** :- (اص) (و ـــــ الوداع کول)

**اَلوداعي پارټي** :- (اَ+ لْ + وِ + دا + عِيْ + پا + رْ + ټِيْ) [اس مر ، مؤ ، وا ، ج :

الوداعي پارټي يا پارټياني] هغه ډوډۍ يا چائي چې د چا د يو ځاے نه د رخصتولو په موقع ورکولے شي.د رخصتي ډوډۍ

**اَلوځول** :- (اَ + لْ + وَ + زَ + وَلْ) [پ ، مص مت] (۱) ورزول ، په هوا کښې پورته کول ،د مزکې نه مخ په پورته خېژول ،مارغان پاڅول (۲) اص :دروغ وئيل، ما : والوځوه ، حا : الوزوي ، ا : ؤبه لوځوي امر : والوزوه.

**اَلوځولے** :- (اَ+لْ+وَ+زَ+وَ+لَے) [پ ، اس ، مف ، مذ ، وا ، ج: الوځولي] ورزولے ، په هوا کړے ، د مزکې نه مخ په پورته کړے.

**اَلوزونګ** :- (اَ+لْ+وُ+زَ+وَ+نْ+ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] الوځونه ، ورزونه ، په هوا کونه ، د مزکې نه مخ په پورته کونه ، د الوځولو کار.

**اَلوزونه** :- (اَ+لْ+وَ+زَ+وَ+نَه) [پ ، حمص] و ـــ الوزونګ

**اَلوزُوونکے** :- (اَ+لْ+وَ+زَ+وُون+کَے) [پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج: الوځُوونکي] (۱) ورزوُونکے ، په هوا کوونکے ، مخ په پورته خېژوونکے ، الوزوونے.(۲) اس مف.د الوځولو جوګه ، د ورزولو ور.هغه څيز چې الوځولے کېږي (۳) دروغ ويونکے.

**اَلوزُونے** :- (اَ+لْ+وَ+ز+وُوْ+نَے) [پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا ،ج: الوځووني] و ـــ الوځوونکے.

**اَلوګردګو** :- (اَ+لُو+ګَ+رْ+دْ+ګُو) [پ (راورټي) اس ،مذ ، وا] غته الوچه

**اَلو ګے** :- (اَ+لُو+ګے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : الوګي] آلو ، پټاټه، کچالو ، (اف)

**اَلَول**:-(اَ+لُ+وَل) [پ (راورټي) ص] تيز،ناڅاپه،د نيامه ، په زور سره

**ـــ پرېوتل** :-(راورټي) اص،ناڅاپه پرېوتل،سر د لاندې راغورځېدل، په درز راپرېوتل ، په ډاګه راپرېوتل.

**اَلولي** :- (اَ+لْ+وَ+لَے) [پ (ب ،خ) ص] غمجن،نولجن ،پرېشانه ، خفه ، لکه : '' الولي ده نن دې مو زړۀ الولي ده هسې تو وته ويايم اے سردوره دا ملک خو د اجمير د بنګولي ده (ادم درخونے ، قلم)

**اَلومل** :- (اَ+لُوْ+مَ+لْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: الملـه ، ج : الوملي) ] خوږين ، ډېر پوخ ، ښۀ پوه ، نرم ، د حلوه په شان پوست.

**اَلون بلون** :- (اَ+لُو+نْ+بَ+لُو+نْ) [پ ، ص] (۱) زياته تلوسه ، بې حده خواهش ، لبواله کېدل ، (۲) د ځنکدن په وخت د بيمار لاس پښې وهل ، لړځپ کول ، ډېره سختي.

**ـــ کول** :- (اص) (۱) زياته تلوسه کول ، بې حده هواش کول.(۲) د ځنکدن په وخت د بيمار لاس پښې وهل ، لړځب کول.

**ـــ کېدل** :- (اص) (۱) زياته تلوسه کېدل ، بې حده خواهش کېدل.د ځنکدن په وخت د بيمار بې قراره کېدل ، د ځنکدن په وخت تلوسه کېدل.

**اَلوند** :-(اَ+لْ+وَ+نْ+دْ) [اس، معر، مذ ، وا] په ايران کښې د يو اوچت غر نوم.

لړ غيار چې په خاطر د فرزند پرېوځي
د پـدر پـه سينـه غـرد الوند پرېوځي حميد

**اَلونی پیږی** :- (اَ+لْ+وَ+نی+پي+ړی) [پ (سو) اس ، ص ، مؤ:] نيکونه ، نسلونه ، اولنۍ پيړۍ ، لکه: ''هغۀ ته ئې الونۍ پيړۍ يادې کړې''

**اَلوول** :- (اَ+لْ+وَلْ) [پ ، ص] ولي ولي ، تاؤ راتاؤ.يو بل کښې ننوتے.ګرګوتي ، ګارګوتي ، ګل ګوتي ، غوټې غوټې ، اړنګ دوړنګ ، پيچې پيچې ، کړۍ کړۍ ، ادل بدل ، ول په ول.

ماله مرګ او ژوند دے تاله تش د څنې ول دے
اور کښې دې بل کړے ولې حسن الوول دے غني خان
په مخ دې الوول زلفې زنګېږي ښاماران فېضان

**ـــ کول** :- (اص) تاؤ راتاؤ کول ، غوټې غوټې کول ، پېچ پېچ کول ، يو په بل کښې ننويستل ، تاؤ راتاؤول ، ګورګوټي کول.

**ـــ کېدل**:-(اص) تاؤ راتاؤ کېدل ، غوټې غوټې کېدل ، پېچ پېچ کېدل ، يو بل کښې ننوتل ، يو بل کښې ننبتل ، کړۍ کړۍ کېدل ول ول کېدل ، خم خم کېدل ، ګونځې ګونځې کېدل ، ګورګوټي کېدل.

**اَلوُويل** :- (اَ+لْ+وو+يَلْ) [پ ، مص ، مت] (۱) وريتول ، ورتول ، الويل ، اورتول ، کباب کول ، سوځول ، جلبل کول ، ستي کول ، لوغړن کول (۲) اص : ډېر دړدول ، غمجنول ، ما : والوويه ، حا: الوويي ، ا : وبه الوويي ، امر : والوويه.

**اَلوويلے** :-(اَ+لْ+وو+يَ+لَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا : ج: الوويلي] (۱) وريت شوے ، کباب شوے ، الويلے.اورته نيولے ، سوځولے شوے ، جلبل شوے ، لوغړن شوے.(۲)اص : ډېر دړدېدلے ، د چا په غم کښې سوځېدلے

**اَلوُوينګ** :-(اَ+لْ+وو+يَنْ+ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱) الووينه الوينه ، سوځونه ، وريتونه ، (۲) غمجنونه ، دړدونه ، لوغړونه ، لوغړن کونه.

**اَلووينه** :- (اَ+لْ+وو+يَ+نَه) [ب ، حمص] و ـــ الووينګ

**اَلوويونکے** :- (اَ+لْ+وو+يُو+نْ+کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : الوويُونکي] (۱) وريتوونکے ، الويونکے ، الويونے ، کباب کوونکے ، سوځوونکے ، ورتونکے ، (۲) اص : دړدوُونکے ، غمجنوونکے ، دړد رسوونکے ، لوغړن کوونکے.

**اُلوهيت** :-(اُ+لُو+هِ+يَ+تْ) [ع ، ص] خدائي توب ، د عبديت ضد ،

**اَلوے** :- (اَ+لَ+وَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : الوي] سوے ، وريت ، کباب شوے ، سوے لووے ، (دا ټکے اکثر د سوي سره ګډ راځي.لکه : سوے الوے)

**اَلوے** :- (اَ+لْ+وے) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: الوي] حرصناک ، اري وړے ، وږ ستړګے.اروا وږے ، ترپا.

**اَلوېدل** :- (اَ+لْ+وي+دَلْ) [پ (وز) مص لا] لوېدل ، غورځېدل ، اچېدل ، پرېوتل ، پرتل ، نسکورېدل ، لاندې را اچېدل ، ما: والوېدۀ ، حا الوېږي ، ا : وُبه الوېږي.

**اَلوېزان** :- (اَ+لْ+وي+زا+ن) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، ج : (مؤ، وا: الوېزانه ، ج : الوېزاني) ] (۱) اوېزان ، ځوړند ، ځانګېدلے ، الوېزاند ، (۲) غمجن ، پرېشانه ، سر وهلے بروهلے ، هک بک ، وارخطا

**اَلوېزاند** :- (اَ+لْ+وي+زا+نْ+د) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا، ج (مؤ ، وا: الوېزانده ، ج : الوېزاندي) ] و ـــ الوېزان

**اَلوېښ** :- (اَ+لْ+وي+شْ يا اَ+لْ+وي+خْ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، ج : الوېشونه] د باد نرۍ وږمه ، نرۍ ابشمه ، د باد نرۍ جوټه ، شمال

**اَلويُونے** :- (اَ+لْ+وَ+يُو+نَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ،وا ، ج : الويوني] و ـــ الويونکے.

**اَلۀ** :- (اَ+لۀ) [ ، اس ظر ، ز ، ] هلۀ ، هغه وخت ، بيا ، نو ، روستو ، پسته ، پس له هغې نه ، هاله ، متل : '' اله به خبر شې چې تاروجبې له ورشې ''.

**اله** :- (اَ+له+) [پ ، د تادي کلمه] هله ، شابه ، درشه، زر کړه ، بيړه کړه ، تلوار کړه.

**په اله اسانه** :- (اص) (۱) په اسانه ،په اساني،سوکه، (۲) اص ، عموماً د څۀ کار کولو يا نۀ کولو په وخت وائي.چې زۀ به ئې داسې په اله اسانه پرې ږدم.

**اله بله**:-(اَ+لَه ، بَ+له) [اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ،وا ، ج : الې بلې) (۱) فرياد ، زاري ، خواست ، منت ، التجاء ، (۲) ښۀ او بده نتيجه

**اَلۀ بولۀ** :- (اَلۀ+بُو+لَۀ) [اف : پ (قاموس) ص] لېون سرے ، لېون سارے

، لبون غرے ، لبون غرت ، لبون باگے ، لبون شُوت ، لبونے ، ساده بوده ، لبون شُوکے ، لبون ټارے۔

**اله گله** :- (اَله + گُ + له) [ پ ، اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : الې گُلې ] (۱) اړے گړے ، شور ژوږ ، شور غوغا ، گړبړ (۲) د سکاؤټس د فوځ په اصطلاح کښې کارکولو (فټېک) ته هم وائي۔

**ـــــ کول** :- (اص) و ـــ اله گُله جوړول۔

**ـــــ جوړول** :- (اص) اړے گړے جوړول ، شور ژوږ جوړول ، د غېر ذمه وارۍ کار کول ، افراتفري جوړول ، تنگول۔

**ـــــ کېدل** :- (اص) اړے گړے کېدل ، شور ژوږ کېدل ، گړبړ کېدل ، د غېر ذمه وارۍ کار کېدل ، افراتفري کېدل۔

**اله مانه** :- (اَله + ما نه) [ اف : پ (قاموس) ] خوامخوا ، ضرور ، ببخي ، ارومرو ، ائي نې ، کوي که نۀ وي ، کوي که نه۔

**الهه** :- (ا + لْ + هَه) [ اف: پ (قاموس) ] خواهش ، ارزو ، تلوسه۔

**اَلهاکي** :- (ا + لْ + ها + کيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ] بددعا ، ښېرې

**اِلهام** :- (ا + لْ + ها + مْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : الهامونه ] (۱) د خدا ے تعالیٰ د طرفه په پېغمبر وحي راتلل (۲) د غېبه د چا په زړۀ کښې يوه خبره راتلل۔

خوشحال که نبي نۀ دے نصيحت خو ئې خوار مه کړه
الـهـام دے چې ئې وائي دا کـلام پـه افغاني
چې خبر کا مخلصان له علم غېبه
دا هـمه واړه الـهام دے د اخلاص          رحمٰن بابا

**اَلهنگ** :- (اَ + لْ + هَنْ + گ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : الهنگونه ] بې قراري ، ژړا فرياد ، ژړا انگولا ، وير ټنډور۔

په نصيب د روغو زړونو فراغت دے
په قسمت د خوږو زړونو الهنگونه          خوشحال

**ـــــ کول** :- (اص) ژړا فرياد کول ، ژړا انگولا کول ، وير ټنډور جوړول ، بې قراره کېدل ، وير ژړا کول ، وير بقا کول ، وير وايا کول ، واوېلا کول۔

**اَلهلال** :- (اَ + لْ + هـ + لا + لْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ] د اردو يو مشهور اخبار وو چې مولانا ابوالکلام ازاد مرحوم د کلکتې نه شائع کړے وو۔

**اَلې** :- (اَ + لې) [ پ ، (ب ، خ ، وز) اس ] دېخوا ، دې لورې ته ، دې طرف ته ، دلته

**اَلې** :- (اَ + لَې) [ اف ، پ (قاموس) کلمه ] د حېرانگۍ کلمه ، د حېرانېدو ژغ۔اله۔

**اَلې** :- (اَ + لِيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ] د مزکې سر ته هغه ټکړه چې د يوې نۀ پاتې شي۔د افغانستان خلق ورته سربانډه هم وائي۔

**اَلې شرنگ** :- (اَلې + ش + رَ + نْ + گ) [ پ (کاکاخېل) عا ، اس ] د ماشومانو په لوبو کښې يو وېنا يا صوت۔

**الياس** :- (ا + لْ + يا + سْ) [ ع ، اس ، معر ، مذ ، وا ] د يو پېغمبر نوم۔

کــه بها دې د وصال عمر جاوېد وے
د اولجې په دود به خضر الياس واخست          علي خان

**الياس زي** :- (الياس + زي) [ پ تر ، اس معر ، مذ ] د پښتنو د يو خېل نوم۔

**اِلياس زئے** :- (الياس + زَے) [ پ تر ، اس ، مذ ، وا ، ج : الياس زي ] د الياس زي خېل سره تعلق لرونکے يو غړے۔

**اَلې اَلې** :- (ا لِيْ + اَ + لِيْ) [ پ (خل) اس ] د ماشومانو يوه لوبه چې يو څو واړۀ واړۀ کوتانېي ئې جوړ کړي وي۔او يو غُنډسکه ورللوي يا وررغړوي۔ شېطان کوتې۔(خ)

**اَلې بلې** :- (اَ + لِيْ + بَ + لِيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ ] فرياد ، د انصاف غوښتنه ، زاري۔

**ـــــ کول** :- (اف) اص ، (۱) فرياد کول ، انصاف غوښتل ، زاري کول ، ژړا انگولا کول ، وير ناتار کول (۲) کوښښ کول ، وس کول منډه تړره وهل۔

**اَلې تار** :- (اَ + لې + تا + ر) [ اف : پ (قاموس) اس ] يو قسم گل چې خوږ لوړے وي

**اَلې ترپ** :- (اَ + لِيْ + تَ + رَ + پْ) [ پ (خ) اس ، مذ ] د جينکو لوبه دوه جينکۍ پښې د يوې بلې په لوري اوږدې کړي او په مزکه کښېني۔ نورې ټوپونه پرې وهي

**اَليت پليت** :- (اَ + لِيْ + تْ + پَ + لِيْ + ت) [ پ (راورټي) ص ، مذ ] (۱) مات گډ ، زېر و زبر ، گډوډ ، اليټ پليټ ، لاټدي باندې ، اړيت خړيت ، (۲) اف : بغاوت۔

**اَليټ پليټ** :- (اَ + لې + ټ پَ + لِيْ + ټ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] و ـ اليت پليت

**اَلې جبلي** :- (اَلِيْ + جَ + بَ + لِيْ) [ پ (ب ، خ) اس ] د جينکو يوه لوبه ده۔ دوه جينکۍ لاسونه يو بل ته ورکړي او گرندۍ چورلي۔ پيشپو ، پيشکورے۔

**اَلې دودا** :- (اَلې + دؤ + دا) [ پ (کاکاخېل) اس ] لوت ، د ټوقو جوگه د خندا ، برې ، توله۔

**اَلې دو دو** :- (اَلي + دَوْ + دَوْ) [ اف : پ (قاموس) اس مذ ] (۱) شېخدو ، بطخک ، د يو مارغۀ نوم دے۔(۲) تلوار گړندے سړے ، تادي جن سړے۔

**اَلې دوري** :- (اَ + لې + دُو + ې ري) [ پ (ب ، خ) ] اخوا دېخوا ، التہ دلته ، لر بر ، هلته دلته ، يو خوا بل خوا۔

**اَلې زلې** :- (اَ + لې + زَ + لې) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ ، ج ] انې بانې

**ـــــ کول** :- (اَف) اص۔ادلون بدلون کول ، ادل بدل کول۔

**ـــــ کېدل** :- (اَف) اص ، ادل بدل کېدل ، ادلون بدلون کېدل۔

**اَليشول** :- (اَلِيْ + شَ + وَلْ) [ اف: پ (قاموس) مص مت ] بدلول ، ما : اليش کۀ ، حا : اليشوي ، ا : اليش به کي ، امر : اليش که

**اَليشونگ** :- (اَليش + وَنْ + گ) [ اف : پ ( قاموس ) حمص ] بدلون ، بدلي

**اَليشونه** :- (اَليش + وَ + نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــ اليشونگ

**اَليشوونکے** :- (اَ + لِيْ + شَ + وُو + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اليشوونکي ] بدلوونکے۔

**اَليشي** :- (اَ + لِيْ + شيْ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] دبدلون کار ، اليشتوب

**اَليشېدل** :- (اَ + لِيْ + شې + دَ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص لا ] بدلېدل ما : اليش شۀ ، حا : اليشېږي ، ا : اليش به شي۔

**اَليشېدنگ** :- (اَ + لِيْ + شې + دَ + نْ + گ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] بدلېدنه

**اَليشېدنه** :- (اَ + لِيْ + شې + دَ + نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص ] بدلېدونه

**اَليشېدونکے** :- (اَ + لِيْ + شې + دُو + نْ + کے) [ اف : پ (قاموس) اس مف ، مذ ، وا ، ج : اليشېدونکي ] بدلېدونکے۔

**اَليشېدۀ** :- (اَ + لِيْ + شې + دۀ) [ اف: پ (قاموس) حمص ] دبدلېدلو کار

**اَليگړے** :- (اَ + لِيْ + گَ + ړَ ے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ] مُلا چرگک ، گُډي چرگ ، کوړې چرگ ، هُدهُد ، مُلا جرجک ، ترکاڼ ، ملا چرچک۔

**اَلېيل** :- (اَ + لې + يَلْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] و ـــ الوويل۔ما : والېيۀ حا : الېيي ، ا : وُبه الېي ، امر : والېيه۔

**ـــــ شوے** :- (اَف) اص ، وريت شوے ، سوځولے شوے ، کباب کړے شوے ، لوغړن کړے شوے۔سوے لوے ، وريت پريت شوے ، جلبل۔

**ـــــ کېدل** :- (اَف) مص لا ، وريتېدل ، سوځېدل ، کباب کېدل ، جلبل کېدل ، لوغړن کېدل

**اَلېيلے** :- (اَ + لې + يَ + لے) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا : ج: الېيلي ] و ـــ اوويلے

**اَلبېنګ**:-(اَ+لې+يَ+نْ+ګ) [اف :پ (قاموس) حمص] و ــ الووينګ

**اَلبېنه** :- (اَ+لې+يَ+نه) [اف : پ (قاموس) حمص] و ــ الووينه

**اَلبيونکے** :- (اَ+لې+يُو+نْ+کے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : البيونکي] و ـــ الوويونکے۔

**اَم** :- (اَ+مْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : امونه] (۱) و ــ ام ۔ (۲) ماشومان د خوراک څيز ته ام يا مم وائي۔

**ـــ کول** :- (اص) خوړل ، ورکوټي ماشومان خوړلو ته ام کول وائي۔

**اَما** :- (اَ+مّا) [ع ، حرف ، عطف]ولې ، ليکن ، خو ، مګر۔

د دلبرې نــه مې خولۀ غوښته اَما
ډکه خولۀ ئې راته دا اووې ، له ما؟ خوشحال

**امارت** :- (اِ+ما+رَ+تْ) [ع ، اس ، ص ، مذ ،وا] مشري ، اميري سرداري ، حکومت ، اقتدار ، لوئي۔

**اَماره** :- (اَ+ما+رَه) [ع : اماره ، ص] (۱) سرکش ، مغرور ، ضدي ، تېز ، بدو ته رااړوونکے (۲) حکم چلوونکے (په بدو معنو کښې استعمالېږي) لکه : نفس اماره

خلق په شېطان باندې ئې لعنت لعنت لرينه
چــارې پــه ســرېــو واړه نــفــس اماره کا خوشحال

**اَماکما** :- (اَ+ما+کَ+ما) [پ ، اص) لرې نزدې ، دالې دورې ، ايسته بيسته ، اخوادېخوا ، يو ځاے ، بل ځاے ، د لرې لرې ، لکه:'' د اما کما خلق راغونډ شوي دي ''

**اِمام يا اِموم** :- (اِ+ما+مْ يا اِ+مو+م) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : امامان يا امومون] (۱) بادشاه ، (۲) پېشوا ، لاربنوونکے ، قائد نمونځ ورکوونکے (۳) اص : د تسپو دپاسه يوه اوږده دانه۔

مقدتي که حرام خور وائي امام تــه
امام لاوائي فلانے محلت کتار شه علي خان

**د ـــ په نيت مې نيت دے** :- (اص) لُغ : په امام پسې نمانځۀ ته ولاړ يم ۔دملا په نيت مې نيت دے۔اص : چې څنګه د يارانو خوښه وي

**اِمامان** :-(اِ +ما+ما +ن) [پ تر،اس،مذ ، ج ، وا: امام] لُغ : پېشوايان ، مذهبي رهنمايان ، اص : حضرت حسن او حضرت حسېن رضي الله عنه (۲) د سلسله اثنا عشريه امامان۔(۳) څلور امامان چې نومونه ئې دادي۔ حضرت امام ابو حنيفه رح ، حضرت امام مالک رح ، حضرت امام شافعي رح ، حضرت امام احمد بن حنبل رح۔

امامان ئې د اولاد واړه بــرحق دي
تر مهدي پورې دواړو خدمګتار يم خوشحال

امامان دي څلور واړه ما مــنلي
خو اعظم په کښې اعظم دے هويدا علي خان

**اِمام باړه** :- (اِمام+با+ړَه) [پ ، فا ، امام باره ، اس ، مؤ ، وا ، ج: امام باړې] هغه ځاے چې د محرم په ورځو کښې د شيعه ګانو مجلس په کښې کېږي۔تعزيې او جنډې ورته وړلے شي۔

**اِمامت** :- (اِ+ما+مَ+تْ) [ع ، اس ، ص ، مذ] (۱) مشري ، سرداري، د امام عُهده ، مذهبي لوے والے (۲) د جمعې نمونځ ورکولو يعني امامت کول ۔(۳) د لارې ښودل ، رهنمائي ، قيادت۔

لکه :- اراسته دې وي په ښۀ ښۀ خصلتونه چې امامت ئې شي خاص د خداے تعالىٰ دپاره'' (اخوند قاسم)

**اِمامتي** :- (اِ+ما+مَ+تيْ) [پ تر ، اس ، ص ، مؤ] د امامت کار ، د امامت منصب ، د جمعې نمونځ کښې مخکښې کېدل۔

**ـــ کول** :- (اص) د جمعې نمونځ ورکول ، د جمعې نمانځۀ دپاره امام جوړېدل، د امامت په مصلىٰ ودرېدل ، نمونځ ورکول۔

**اماميه** :- (اِ+ما+ميْ+يَه) [ع ، اس ، ص، مؤ وا] شيعه ، شيعه ګان

**اَمان يا اَمون** :- (اَ+ما+نْ يا اَ+مو+ن) [ع ، اس ، مذ ، وا] پناه ، حفاظت ، امن۔

هر بهار ئې له خزانه
په امان لرې سبحان صدر خان

**ـــ اَمان کول** :- (اِص) پناه غوښتل ، د حفاظت دپاره دُعا غوښتل ، د امن دپاره خواست کول ، د خېريت دعا غوښتل۔

چې سر دې خوږ شي امان امان کړم
وايم چې رنځ دې واړه په ځان کړم خوشحال

**ـــ غوښتل** :- (اص) (و ـــ امان امان کول)

**ـــ موندل** :- (اِص) پناه موندل ، د چا په حفاظت کښې راتلل ، د زور ظلم زياتي نه بچ کېدل ، په امن کېدل۔

**ـــ ورکول** :- (اص) پناه و رکول ، په حفاظت کښې اخستل ، امن ورکول ، د چا د دښمن نه بچ کول۔

**په ـــ کول** :-( اص ) پناه ورکول ، په حفاظت کښې راوستل ، د جنګ جګړې نه خَلاصول

**په ـــ کېدل** :- (اص) پناه کښې راتلل ، په حفاظت کېدل ، جنګ جګړې نه خلاصے بيا موندل۔

**د خداے په ـــ** :- (اص) د خداے تعالىٰ په حوالې ، د خداے تعالىٰ په پناه کښې ، د خداے تعالىٰ په حفاظت کښې۔دا کلمه د چا د رخصتولو په وخت وئيلے کېږي۔

**اَمان الله** :- (اَ+ما+نُ+ل+لا+ه) [ع ، اس ، معر ، مذ ، وا] د افغانستان د يو بادشاه نوم ؤ۔

**اَمان کوټ** :- (اَمان+کو+ټ) [پ ، اس ، معر، مذ ، وا] د کلي نوم۔

**اَمان ګړ** :- (امان+ګَ+ړ) [پ ، اس ، معر ، مذ ،وا] د نوښار سره د يو کلي نوم۔

**اَمانت يا اَمونت** :- (اَ+ما+نَ+تْ يا اَمو+نَتْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : امانتونه يا امونتونه] (۱) په اتبار ورکړے څيز ، چا سره په حفاظت کښې ايښودلے څيز ، د چا سره پيسې محفوظې کښېښودل (۲) ثابت ، سالم ، اماني ، محفوظ ، ټول (۳) څوک چې په مسافرۍ کښې مړ شي نو د څۀ خاص ميعاد دپاره د هغۀ لاش په قبر کښې ښخ کړے شي۔بيا ئې خپل خپلوان راؤباسي او خپل وطن ته ئې يوسي ۔ (۴) تر څو چې جينۍ وادۀ شوې نۀ وي هغې ته امانت وائي۔

چې زما له رزقه زيات زما څخه وي
امانــت غــوندې ئې بل لره ساتم
د زړۀ حال ئې امانت پکښې ليدۀ شي
چې ئې تن په صانۍ صاف دے ترزلاله خوشحال

امانت به د لحد په ميان کښې پروت وي
هــر چــې اوســي امــانــت پــه دا دنيا رحمٰن بابا

**ـــ خوړول** :- (اص) په امانت کښې خيانت کول ، خائن کېدل ، سپارلے شوے څيز په خپل کار راوستل ، په امانت منکرېدل۔

**ـــ خيانت کول** :- (اص) امانت خوړل ، امانت کښې خيانت کول ، سپارلے شوے څيز په خپَل کار راوستل ، په امانت منکرېدل ، بې اتباري کول ، خائن کېدل۔

**ـــ کېدل** :- (اص) (۱) چا سره يو څيز امانت کښېښودل ، يو څيز په امن او سالم ساتلو دپاره چاته حواله کول (۲) مړے مزکې ته د امانت په ډول سپارل۔

**ـــــ سلامت** :- (اص) روغ جوړ صحیح سالم ، په تول پوره ، امانت سلامت ،

**مړے ـــــ کول** :- (اص) مړے مزکې ته د امانت په طور سپارل ، په مسافرۍ کښې چې څوک مړ شي ـ نو د څۀ خاص مودې دپاره هغه مزکې ته امانت وسپارلے شي ـ او بیاروستو د هغۀ لاش خپل وطن ته یوړے شي ـ

**اَمانت دار** :- (اَمانت + دا + ر) [فا تر ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : امانت داران ، (مؤ ، وا : امانت داره ، ج : امانت دارې] امین ، امانت ساتونکے ، یو څیز په حفاظت ساتونکے ، هغه څوک چې امانت کښې خیانت نۀ کوي ـ امانت گر ، دیانت دار ، اتباري ، امانتي ، لکه : " څلورمه معجزه ددۀ د ذات شریف دا وه چې حضرت ص امانت دار نهایت وو " (اخوند قاسم)

**اَمانت داري** :-( اَمانت+دا+ري ) [ فا تر،اس،ص،مؤ،وا،ج: امانت دارۍ] ایمانداري ، دیانت داري ، د څیز په حفاظت کښې ساتنه ـ

**اَمانت گر** :- (اَمانت + گ + رْ) [پ تر ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : امانت گران ، (مؤ ، وا : امانت گره ، ج : امانت گرې) ] و ـ امانت دار ـ

**اَمانتي** :-(ا+ما+نَ+تيْ) [پ (روسي قاموس) اس،فا،ع] و ـ امانت دار

**اَمانټه** :- (اَ + ما + نْ + ټَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ) (۱) واؤره او باران گډ وږ ، (۲) د واؤرې غټې دانې ، د واؤرې غټ پوسي ـ

**اَماني** :- (اَ + ما + نيْ) [پ ، ص] (۱) ټول ، ثابت ، سالم ، لواړ ، تمام درست ، کلهم ، غونډ (۲) اتبار ، حفاظت سره (۳) په دیاړي مزدوري ، کچه مزدوري (۴) کار په ټیکه ورکول ـ

سُور چار گل ئې بلبدۀ لکه چراغ
اماني صورت ئې ؤ د گلو باغ — عبدالغفار

کاش که خط دې اماني وماته راکړي
چې له ما سره وعده کړې د فردا — رحمٰن بابا

**ـــــ سلامي** :- (اَص) و ـــــ امانت سلامت ـ

**اَمانے** :-( اَ+ما+نے ) [ اف : پ (قاموس) اس،مذ ] (۱) د لوندوختو گوله، چې هلکان ئې جوړه کړي ـ بیا ئې ټینگه کړي او بیا ئې په مېنځ کښې سورے وکړي ـ (۲) پښتنانۀ امان نومې سړي ته امانے وائي ـ

**اَمبا** :- (اَ + م + با) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ] د گډ اواز ، د گډ بغا ، بیں ، بې ، د گډ ټا ، د گډ ډَرته ـ

**اَمبار یا اَمبور** :- (اَ+مْ + با + ر یا اَ + مْ+ بو + ر) [پ ، فا: اتبار ، اس، مذ، وا ، ج : امبارونه یا امبورونه] (۱) ډېرې ، دلۍ (۲) ډېر زیات بې حسابه څیز (۳) اف : د کشتۍ څپېره یا چپه (۴) (ب ، خ) د غلې ذخیره یا گودام ـ (۵) د یو کلي نوم ـ

ټپه: امبار د غم مې په زړۀ پروت دے
د بې ارزۍ ژړا چې راشي و خاندمه!

**ـــــ ماتول** :- (اص) (۱) د امبار نه غله ورکول ، د گودام نه غله رایستل (۲) د گودام نه غله په غلا وړل ـ

**اَمبار خانه** :- (اَمبار + خا+ نه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : امبارخانې] د غلې ذخیره کولو ځاے ، د غلې گودام ـ

**اُمبارک** :- (اُ + مْ+ با + رَ + ک) (پ ، اس، مذ ، وا] (۱) مبارک، پاک صفا ، بې داغه ، مقدس(۲) د چا په ښادۍ کښې شاملېدل،لکه :"اُمبارک شه "

**اَمبارکښ** :- (اَمبار + کَ + شْ یا امبار + کَ + ښ) [اف ، پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : امبارکشان ] د کشتۍ ماڼگے ، د کشتۍ څپېره یا چپه وهونکے ـ

**اُمبارکے** :- (اُ+مْ+با+رَ+کَے) [فا :پ(قاموس) اس، مذ ، وا] د سترگو گُل ، پوله

**اُمبارکي** :- (اُ + مْ +با+ر+کيْ) [پ ، اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج: امبارکۍ] ارکي ، مرغشکے ، د چا په خوشحالۍ خوشحالي ظاهرول ـ

ټپه: امبارکي راکړئ عالمه
د تهمتونو سره یار قبوله کړمه!

**ـــــ کول** :- (اص) مبارکي کول ، مرغ شۀ کول ، د چا په خوشحالۍ خوشحالي ظاهرول ـ

**ـــــ ورکول** :- (اص) (و ـــــ اُمبارکي کول)

**اُمبارکي** :- (اُ + مْ + با + ر + کي) [پ (ب ، خ) اس ، مؤ ، ج] د سترې شپېرې اوږدې یا لوئې تبې (ټائیفائډ) دانې ـ

**ـــــ راختل** :- (اص) د سترې یا شپېرې تبې سپینې وړې دانې راختل ـ

**اَمبارۍ** :- (اَ + مْ + با + رَی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د یوې غرئیزې ونې نوم

**اَمبالۍ** :- (اَ+ مْ+ با + لی) [پ ، اس ، مؤ ، وا] د اتي کجاوه ، پالکۍ ـ

گلشن سور شو د هاتي په امبالۍ
نارینه ؤ کار ئې اوکړو د سیالۍ — عبدالغفار

**اَمبانکه** :-(اَ+مْ+با+نْ+کَه) [ اف :پ (قاموس) اس،مؤ،وا ، ج : امبانکے ] غټه شان دانه چې اکثر په سر کښې راخېژي ، مورینه دانه ـ

**اَمبراني** :- (اَ+ مْ + بْ + را + ني) [پ ، اس ، مؤ ] د ماشومانو یوه لوبه چې په هغې کښې وائي : "امبراني مل دې څوک ؟"

**اَمبر سَر** :- (اَم + بَ + رْ + سَ + رْ) [پ (عا) ه، امرتسر، اس، مذ] (و ـــــ امرتسر)

**اَمبرسرے** :- (اَمبر + سَ + رَے) [پ (عا) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : امبرسري) امرتسرے ، امرتسر سره تعلق لرونکے ، د امرتسر ـ

**اَمبر سرۍ غوا** :- لُغ : د امرستر غوا ، اص : (۱) زیاتې پئې ورکونکې غوا ، پیه وره غوا ـ (۲) غټه ښځه ، چاخه ښځه ـ

**اَمبرسرۍ مېښه** :- لُغ : د امرتسر مېښه ، (اص) و ـ امبرسرۍ غوا )

**اَمبر لُوبه** :- (اَ + مْ + بَ + رْ + لُو + بَه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] د پنډوس د لوبې یو قسم ـ

**اَمبر چمبر** :- (اَ+ مْ + بَ + رِ+ چَ+ مْ + بَ + رْ) [پ ، ص] مُشت گرېوان، یو بل کښې ننوتي ، پرزونه ، یو بل سره ننبتي ، یو بل سره ښخ ، غویمې ، خرېځې

**ـــــ کېدل** :- (اص) مُشت و گرېوان کېدل ، یو بل سره لاس اچول ، یو بل سره په پرزولو ورتلل ، یو بل سره ننبتل،خپلو کښې لاندې وتل ـ

**اَمبُور** :- (اَ+ مْ + بُو + ر) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : امبورونه] د اوسپنې هغه نوسے چې غاښونه ، مېخونه او نور څیزونه پرې ایستے شي ـ زمبور ، پلاس، متل : غاښ چې رنځور شي علاج ئې امبور شي ـ

د هم خوا زما د ورور په مرگ کړه یخه
شوکۀ مه په امبور ددۀ نه غوښۀ — عبدالغفار

**ـــــ ور اچول** :- (اص) څۀ څیز ته امبور نیول ، رنځور غاښ د ویستلو دپاره په امبور کښې رانیول ـ

**اَمبولک سیدالک** :- (اَ+ مْ + بو + لَ + کْ + سي + دا + لْ + کْ) [پ (خ) اس ، ص ، مذ] د زنانو یو قسم گډا ـ

**اَمبیل** :- (اَ + مْ + بي + لْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : امبېلونه] امېل ، هار ، منه

**ـــــ اَچول** :- (اص) امېل په غاړه کول ، هار غاړه کښې اچول ـ

**ـــــ په غاړه کول** :- (اص) (و ـــــ امبیل اچول)

**ـــــ پېرل** :- (اص) امېل جوړول ، هار پَېیل ، منه پېیل ـ

هم امبیل ئې دے په غاړه د گوهرو
هم بویونه ترې نۀ خېژي د عنبرو — ملا نعمت الله

**اَمپړه ککې** :- (اَ م + پ + ړَ + کَ + کَے ) [ پ (سو) اس ، مذ ، وا] گلي ډنډه ، ابس ډنډے

**اَمپه** :- (اَ + مْ+ پَه) [اف :پ (قاموس)اس ، مؤ] د څوان د کاښي نه جوړے شوے بُت

**اُمت** :- (اُ + مَ + تْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : اُمتونه ] جماعت ، خلق ، د يو مذهب پېروکار ـ لکه :- "د پېغمبر عادت اُمت لره عبادت دے" (اخوند قاسم)

د اُمـت ئـې بـرگزين دي اثـنا عشر
په بزرگي کښې د هم جهان مخدوم دي خوشحال

**اِمتحان** :- (اِ + مْ + تِ + حا + ن ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : امتحانونه ] ازمېښت ، ازمايښ ، تجربه ، پرتال.

چې څوک په لاس کا ما اِمتحان اوکړه
فـتـح دا يـم د ورتــــه حـضـوره
که مې بخت که مې لښکر دے
لاپـــخـتـه پـــه امـتحان شوم خوشحال

**ـــــ اَخستل** :- (اص ) (۱) ازمېښت کول ، ازمايش کول ، ازمائل ، د يو مسئلې يا سوال حل ، تپوس کول ، (۲) چا باندې دازمايش دپاره پېتے ورغورځول.

**ـــــ پاس کول** :- (اص ) امتحان يا ازمايش کښې کامياب کېدل ، په ازمايش پوره ختل ، د يو مشکل سوال صحيح جواب ورکول.

**ـــــ کول** :- (اص) تجربه کول ، ازمېښت کول ، ازمايش ، ثابتول.

**ـــــ ورکول** :- (اص) امتحان کښې شاملېدل ، يو ازمېښت په سر اخستل ، امتيان ورکول.

**اَمته** :- (اَ + مْ+ تَه) [اف :پ (قامو) اس ، مؤ ، وا ، ج : امتې] طمع ، ارزو ، اُمېد.

**ـــــ کول** :- (اص) طمع لرل ، ارزو کول ، اُمېد لرل ،

**اَمته دار**:-( اَمته +دا + ر ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ص ، ج : امته دارې] اُمېدوار ، طمع لرونکے ، په طمع ، پامته دار ، حاجتمن.

**اُمتي** :- (اُ + مَ + تيْ ) [ ع ، پ ، اص ، مذ ، وا ، ج : امتيان ] د اُمت يو فرد ، د يو مذهب يا عقيدې پېروکار ، هر مسلمان ته د رسول اکرم صلی الله عليه وسلم اُمتي وئيلے شي.

خـو آخر اُمتي ستا يم
لاس د رب د پاره راکړه
اُمتيان د محمد طه لـقـب يو
په قيامت به يو په نور شهدا علي خان

**اَمتي** :- (اُ + مْ + تيِ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] د کور واکمنه ، د کور واکداره ښځه ، د کور د مالک تبر ، د کور مېرمن.

**اِمتياز** :- (اِ + م + ت + يا + زْ ) [ ع ، ص ، مذ ، وا] (۱) فرق ، تميز ، بېلتون ، جدائي (۲) د سړي نوم.

**ـــــ کول**:-(اص) فرق کول ، تميز کول ، شناخت کول ، ترجيح ورکول.

**ـــــ لرل** :- (اص) فرق لرل ، ترجيح لرل.

**اِمتيان** :- (اِ + مْ + تِ + يا + نْ ) [ پ (عا) اس ، مذ ، وا ، ج : امتيانونه ] ( و ـــ امتحان)

**اَمجد** :- (اَ + مْ + جِ + دْ ) [ ع ، اس تفض ، مذ ، وا] (۱) ډېر معزز و زيات عزت من، ډېر د قدر وړ ، (۲) عا : ابجد ،لکه : "په امجدو کښې خبرې کوي.

ترې که بد دې خو بيا مجد دي
هر چې همجد دې هغه امجد دي خوشحال

**اَمجه** :- (اَ + مْ + جَه) [پ (سو) ص، مذ ، وا] بېکاره ، نامرد ، چنونا ، نر ښځے.

**اَمجه** :- (اَ + مَ + جَ) [ پ (سو) اس ص ] (۱) فا ع ، هغه څوک چې مذبذب وي ـ بې معنې وېنا کوونکے (۲) ف : بې مطلبه خبره ، مهمل خبره ، هغه خبره چې پوره وضاحت ئې نۀ وي شوے.

**اَمخته** :- (اَ + مْ + خ + ته ) [ پ (فا: اموخته ) ص ] عادت شوے ، عادتي ، اموخته ، هيلک.

**اِمداد** :- (اِ + مْ + دا + دْ ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : امدادونه ] (۱) مدت مدد ، مرسته ، ملاتړ (۲) اص : چنده.

دۀ زمونږ د پـاره اوکـه ډېر امداد
اوس ددۀ نيکي به څنگه کړو برباد عبدالغفار

**ـــــ کول** :-(اص ) (۱) مدت کول ، مدد کول ، مرسته کول ، ملاتړ کول (۲) د چا پيسو ټکو سره مدت کول ، د چاحاجت پوره کول ، چنده ورکول ، د چا په کار کښې حصه اخستل ، د چا مشکل اسانول.

خـو بـاچـه دربخو په بانه مېل وهي په سترگو
امداد کاندې د سترگو چې که ښې له زړونو ننبلي
خوشحال

**اِمدادي** :- (اِ + مْ + دا + دي ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : امداديان] مدت يا مدد کوونکے ، مددگار ، مرسته کوونکے ، مدت گير.

**اَمدرپت** :- (اَ + مَ + دْ + رَ + پْ + تْ ) [ پ (خ ) فا : آمد رفت ، اس ، مذ] امد رفت ، تلل راتلل ، تعلق ، راشه درشه ، تلۀ راتلۀ ـ تگ راتگ

**اَمد رفت** :- (اَ + مَ + دْ + رَ + فْ + تْ ) [ فا ، اس ، مذ] (و ـــ امدرپت)

**اَمدن** :- (اَ + مْ + دَ + نْ ) [ پ ، فا ، آمدني ، اس ، مؤ ، وا ] امدني ، گټه ، فائده ، حاصل

**اَمدني** :- (اَ + مَ + دْ + نيْ ) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ] ( و ـــ امدن )

**اَمده** :- (اَ + مَ + دَه ) [ اف : پ ( قاموس) اس ، مؤ ، وا] مرسته ، پره، جنبه ، طرفداري.

**ـــــ کول** :- (اف) اص ، مرسته کول ، پره کول ، طرفداري کول.

**اَمر** :- (اَ + مَ + رْ ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : امرونه ] (۱) حکم ، فرمان ، فېصله (۲) خبره ، کار ، کاروبار (۳) په گرامر (صرف) کښې حکميه يا امر په حالت ، (۴) تقدير ، د خداے تعالٰی حکم.

**ـــــ فرمائيل** :- (اص) (و ـــ امر کول)

چې څۀ حکم ورته کړې هغه به کړي دوي
چې څۀ امر فرمائے هغه به اوړي دوي نعمت الله
امر کړه خوشحال پستنه اوسه له نهۍ
هر چې کاندې هغه زر په پښېماني وي خوشحال

**ـــــ کول** :- (اص) حکم کول ، فرمان کول.

**اُمر** :- (اُ + مَ + رْ ) [ پ (ب خ ) اس ، مذ ، وا ، ج : اُمرونه ] (۱) و ـ امر ، (۲) عمر ، ژوند ، ژوندون.

**اُمرا** :- (اُ + مَ + را ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : امير ، ج : امراگان يا اُمرايان] اميران، حاکمان ، مالدار او دولتمن خلق ، لوے خلق ، رئيسان ، امير او شريف خلق ، صاحب اقتدار خلق.

په دنيا د بادشاهاون سره ضد دے
اُمــرا ســره دښـمـن وي اُمــــرا
کال پـــه کال امرايان دي چې پرېوځي
چې طوفان شولې لشکرې کوم ئې شمار خوشحال

**اَمراض** :-(اَ + مْ + را + ضْ ) [ع ، اس،مذ،ج ، وا: مرض ] مرضونه ، بيمارۍ ، ناروغتيا.

د خپل خاطر احوال به زۀ خپل يار وته معلوم کړم
بـيـمـار بـــه لـه طبيبه پـه څو پټ لري امراض (خوشحال)

**اَمرت** :- (اَ + مْ + رَ + تْ ) [ اف : پ (قاموس) مذ ،وا ، ج : امرتونه ] ، امروت ، امرود.

**اَمرت** :- (اَ + مْ + رَ + تْ) [ه ، ص] لُغ: نهٔ مړ کېدونکے ، نهٔ فنا کېدونکے ، تل تر تله ، ژوندے۔ اص: آب حيات ، ترياق ، داسې څيز چې سړي تـه خوشحالي ورکړي او ژوند پـرې زياتېږي۔ ډېرو مؤثرو دارو ته هم امرت وئيلے شي۔

ـــــ **دهارا** :- (اص) يو مشهور دارو چې د هر مرض دپاره استعمالېږي خصوصاً د خېټې او درد دپاره۔

**اَمرت سر** :- (اَمرت + سَ + ر) [ه ، اس ، معر ، مذ] په هندوستان کښې د سکهانو يو متبرک ښار ، عام خلق ورته امبرسر وائي۔

**اَمرد** :- (اَ + مْ + رَ + دْ) [ع ، اس ، ص ، مذ ، وا] هغه هلک چې لاد ږيرې خط ئې په مخ نهٔ وي راغلے۔ پاک مخے هلک ، نوعمر ، ښکلے هلک ، جَنے ، پټه ، نوخېز ، سپينه خولهٔ هلک ، پې مخے هلک۔ کچه خولهٔ هلک۔

ـــــ **پرست** :- (فا) اص ، د هلکانو شوقين ، هلکانو سره مينه لرونکے ، د مردانه حُسن پرستار ، هلک باز ، بچه باز ، وېړکي باز

**اَمر زنه** :- (اَ + مُ + رْ + زَ + نَه) [پ ، (امرزگاري) ، ص ، مؤ] معافي ، بخښنه۔

**اَمر داد** :- (اَمر + دا + د) [فا ، اس ، مذ] د يو مياشتې نوم۔

اس سُنبله دواړه امرداد شهر يور دي

پـښـتـو سنبله وېږي اسو گنه زمرے خوشحال

**اَمرسه** :-(اَ مْ رَ + سه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: امرسې] (۱) امرسه يو قسم خواږهٔ (۲) اصطلاحي طورسره د معشوقې دپاره استعمالېږي

**اَمرگان** :- (اَ + مِ + رْ + گا + نْ) [پ، اس ، مذ ، ج ، وا: امر] (۱) و۔ اُمرا (۲) ملگري۔

امرگان ئې په دربار کښې ډېر ښـک خوا دي

پـــــه خـــاطـر د سـيـد مـيـر دي واړه لال

امرگان ئې همگي ددهٔ په رنگ دي

هر حيله د خپل کردار کا استعمال خوشحال

**اَمرل** :- (اَ + مَ + رَ + لْ) [پ ، مص ، مت] جنس جنس سره بېلول۔ د يو قسم څاروي د بل قسم نه جدا کول ، بېخي بېلول ، گوښي کول لکه : " د وريژو نه کاڼي وامره "۔

**اَمرلے** :- (اَ + مَ + رَ + لَے) [اف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: امرلي] يو جنس د بل جنس نه بېل شوے ، جدا شوے ، يو څيز گوښي کړے شوے ، مال څناور سره بېل کړے شوے۔

**اَمرت** :-(اَ + مْ + رُو + تْ) [پ،اس ، مذ ، وا ، ج: امروتان يا امروتانړ] (و- امرت]

**اَمرود** :- (اَ + مْ + رُو + د) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: امرودان] و۔ امرت

**اِمروزه** :- (ا + مْ + رو + زَ) [پ ، ص] (۱) امروزه ، همروزه ، د يوې ورځې دننه (۲) نـنے سبق ، (دا د سيپارې په سبق کښې استعمالېږي)

**اَمرُوزي** :- (اَ + مْ + رُو + زي) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ] يو قسم آسماني رنگ ململ چې سپين ټکي په کښې وي۔

**اَمرُونکے** :- (اَ + مَ + رُو + نْ + کَے) [اف: پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: امرُونکي] د څناورو د يو بل نه بېلوؤنکې يا جدا کوونکے ، سخي بېلوونکے۔

**اُمړے** :- (اُمْ + ړے) [پ ، ص، مذ ، وا ، ج: اُمړي] اولنے ، ړومبے ، لوے ، مخکښې۔ اوا ليناۓ ، اوړماۓ ، لمړے ، وړمبے ، ړومنۓ

**اُمړے** :- (اُ + مْ + ړَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: اُمړي] کچه ، يوستوے ، پيمړے ، ياستوے ، اُوم۔

ـــــ **تار** :- (اص) ياستوے تار ، کچه پښے ، يوستوے تور ، اُوم تار۔ اص: ډېر کچه ، ډېر کمزورے ، هغه څيز چې هيله بهانه غواړي۔

**اَمزرے** :- (اَمْ + زَ + رَے) [پ ، اس ، مذ، وا ، ج: امزري] مزرے ، زمرے ، منزرے ، ممزرے ،

**اَمزولے[همځولے]** :- (اَمْ + زو + لے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مو ، وا ، ج: امزولي] همزولے ، هم عمر ، د يو عمر و۔ لکه: "هغه زما امزولے دے"

خپل امزولي ورسره نهٔ کاندي لوبې

نهٔ غوندسکې نهٔ غوزان د مرگ د لاسه عبدالعظيم

ټپه: امسا په لاس مخې ته راغلے

رنځوره زهٔ دې د پوښتنې له درتلمه!

**اَمسا يا اَمسو** :- (اَمْ + سا يا اَمْ + سو) [پ ، ع: عصاء ، اس ، مؤ ، وا ، ج: امساگانې] همسا ، کونتۍ ، لکاړا ، ټنډے ، ټنډوکا ، لکړا ، لښته۔ متل:- " د ډېرو امسا د يو گېډے "

ـــــ **لگول** :- (اص) (۱) د امسا په تکيه تلل ، په ټنډۍ گرځېدل ، لکاړا لگول ، په کونتۍ تلل ، د ضعف په وجه په امسا گرځېدل۔ (۲) د ړانده‌ٔ د امسا په لگولو ځان ته د لارې لوړې ژورې معلومول

**اِمساک** :-(اِمْ + سا + کْ) [ع] لُغ: بندېز ۔ اص: (۱) دېري ، شومتيا ، (۲) سوکړه ، باران نهٔ کېدل (۳) هغه کېفيت چې په کور والۍ کښې څهٔ ساعت لگي۔

که شهرت په امساک بند کړې

پـه سـوزاک بـه شې بيمار خوشحال

**اِمستل** :- (اَ + مِ + سْ + تَ + لْ) [اف: پ (قاموس) مص ، مت] پېرل ، پېيل ، څهٔ څيز په مزي يا تار کښې پېرل۔

**اَمُستل** :- (اَ + مَ + سْ + تَ + لْ [اف: پ (قاموس) مص مت] بېلول ، جدا کول ، فرخ کول ، گوښې گوښې کول ، د يو بل نه لرې کول ، په يو بل کښې فرق کول ، بېلتون راوستل ، تميز کول۔

**اَمغاړے** :- (اَمْ + غا + ړَے) [اف: پ (قاموس) ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: امغاړي] ملگرے ، همغاړے ، اشنا ، دوست، د لارې مل۔

**اِمغانې** :- (اَ مْ + غا + نې) [پ ، اس ، ج] مغالنې ، مغيانې ،لکه :- " امغانې مې خوږېږي "

**اَمغلن** :- (اَمْ + غَ + لَ + نْ) [پ (راورټي) اس ، ص ، مذ، وا ، مؤ ، وا: امغلنه] (۱) اُوم ، کچه ، چې پوخ نهٔ وي ۔ خمسوز ،نيم پُخته ، خزموزه (سو) (۲) بې وخته ، د مودې نه اول۔

ـــــ **اَچول** :- (اص) د وخت نه اول يو کار کېدل ، د مُودې نه اول بچے پيدا کېدل ، امغلن غورځول ، بې مودې لنگېدل ، زيان کول۔

ـــــ **غورزول [غورځول]** :- (اص) (و ـــ امغلن اچول)

**اَمک** :- (اَ + مَ + کْ) [پ (وز، عا) ع: احمق ، ص ، مذ ، وا] احمق ، کم عقل ، بې وقوف، ناپوهه، جاهل، ساده بې عقله، بوله، ساده باده ، ساده بُوده، بودلے۔

**اِمکان** :-(اِمْ +کا+ن) [ع،ص ،مذ ، وا] د کېدو وړ ، کېدونکے ، ممکن۔

هغه اووې که ډېـر گران دے

دا کــار لــرې تـر امکان دے صدر خان

ـــــ **لرل** :- (اص) د کېدو جوگه کېدل ، چې ممکن وي۔ کار چې کېدے شي۔ شُونے۔

**اِمکانې**:-(اِ مْ + کا + نې) [پ تر ، ص ج د کېدلو جوگه ، د کېدو قابل، ممکن ، شُونے

**اَمکوړے** :- (اَمْ + کُو + ړَے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: امکوړي] د داړونکي يا ماتوونکي څناور ورکوټے بچے۔

**اَمکه** :- (اَ + مَ + کَ) [اف: پ (قاموس) ع: عمه ، اس ، مؤ ، وا ، ج: امکې] ترور ، د پلار خور ، ترېر ، ببو ، اگو۔

**اَمکۍ** :- (اَ + مَ + کۍ) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] (و ـ امکه)

**اَمل** :-(اَ + مَ + لْ) [پ ص] (۱) وجه، کبله ، لکه : " له دې املَ د جرگې بنيادونه لړزېدل " ۔ (۲) وخت ، مال ، مالې ، لکه : " د دولس بجو

امل وو ، چې دا کار وشو ''

**اَمَل** :- (اَ + مَ + لْ) [اف : پ (قاموس) ع : عمل ، ص ، مذ ، وا ، ج : املونه یا املینه ] (۱) کردار ، چال چلن ، خوئي بوئي (۲) نشه ، د نشې عادت (۳) اپریشن ، جراحي.

پـه څو غافل ئې غفلت تتلیه
لـــه کاره ټوله امل ایستلیه     خوشحال

**ـــــ کول** :- (اص) (۱) نشه کول ، نشې دار ځیزونه استعمالول (۲) په څۀ کار شروع کول.(۳) تعویزونه کول ، پیریان قابو کول.

**اِملا** :- (ا + مْ + لا) [ع ، اس ، مؤ ، وا ] (۱) ډکول ، مکمل کول (۲) د رسم الخطَ په ډول لیکل . (۳) بنائیلے شوے مضمون ټیک لیکل . د بل د خولې وئیلے مضمون درست لیکل.

عــطارد د نور قلم له لاسه کېږي
چې په دا خوبئ بهرام انشا املا کا     خوشحال

**اِملاک** :- (اِمْ + لا + ک) [ع ، اس ، مذ ، ج] ملکیت ، د زمکې جائیداد.

که منصب وۀ که خاني که سرداري وه
که په لاس ملک و املاک ؤ ، واروۀ تېر شۀ     خوشحال

نۀ املاک د سلېمان په هزار کاله
نــۀ یــوه کـړئ طاعت په دا دنیا     رحمٰن بابا

نۀ املاک د شاهجان او اورنگ زیب
نۀ څو شعره چې د خپل دفتر بخښني     خادم

**اَملتاس** :- (اَ + مَ + لْ + تا + س) [ه ، اس ، مذ ، وا] لاټېس ، ګرډَ نلي ګړدنلۍ ، جرک لاټېس ، خلاص پلے . یوه ونه ده چې د پلې مغز ئې ماشومانو ته د جاړو یا جلابو دپاره ورکوي.

**اَملوټ** :-(اَمْ+لُو+ټ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] یو قسم لوبه ده

**اَمْلوک** :- (اَمْ + لُو + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] وــ آملوک

**ـــــ رنګي** :- (اص) لُغ : د املوک په شان رنګ لرونکې ، اص : تور ، سکاڼ،تک تور،مشکي،مجازاً : سکاڼي معشوقې ته وئیلې شي

**د املوکو په تول کښې راتلل** :- (اص) (۱) په پردي قصور کښې نیولے کېدل ، د چا په سر نقصان موندل ، د بل په ډب کښې تلل ، هېڅ بې هېڅه زورېد . (۲) په مفتو کښې په لاس راتلل.

**اَملي** :- (اَ + مَ +لي) [پ (عا) عملي ، ص ، مذ ، مؤ ، وا ، ج : املیان] عملي ، نشئي ، د نشې په ځیزونو عادتي.په څۀ نشه اموخته.

د ګلـرنګو ناز په هر کله د ورو د ے
بېهوده بې ځایه ناز کا رنګ املوکې     خوشحال

**اِملي** :- (اِمْ + لِيْ) [ه ، اس ، مؤ ، وا] یو قسم ونه ده چې پلے ئې تریو وي د هاضمې او د جاړو دپاره استعمالېږي.

**اَمن** :-(اَ+مَ+نْ) [ع ،ص ، مذ ، وا] (۱) پناه ، حفاظت (۲) قلاره قلاري ، چې جنګ جګړه نۀ وي (۳) دماغي تسکین ، د زړۀ تسلي ، ارام.

که ځا ے امن خوراک پوشاک لري
شـکر و کاره نور څۀ بلغاک لري     خوشحال

**ـــــ اَمان** :- (اص) ص : امن او سلامتي ، قلاره قلاري ، خبر سلا ، محفوظ ، مامُون

غم د هجر چې تېرې تر کاڼي اور د ے
لــه دې غمه مې په امن و په امان کړه     رحمٰن بابا

**ـــــ کوټ** :-(اص) ص : دامن او پناه ځا ے،د خبرسلې ځا ے ، دارالسلام

**ـــــ ورکول** :- (اص) پناه ورکول ، په حفاظت کښې اخستل ، د پناه ورکولو ذمه اخستل.

**په ـــــ کول** :- (اص) په حفاظت کول ، په پناه کښې راوستل.

**په ـــــ کېدل** :- (اص) (۱) پناه موندل ، په حفاظت کښې راتلل ، د جنګ جګړې نه خلاصے بیا موندل ، د شر فساد نه خلاصے موندل (۲) د باد باران نه پناه موندل.

**د ـــــ ځاے** :- (اص) هغه ځا ے چې د هر قسم امن ، حفاظت او پناه په کښې وي.لکه : '' حرم شریف د امن ځا ے د ے ''.

**اَمنا**:-(اَ + مَ+نا) [ع : اَمنّا) منل،قبلول،تسلیمول ، تائید کول.امین کول ،

**ـــــ کول** :-(اص) یوه خبره منل ، څۀ کار کولو ته غاړه کښېښول ، په څۀ خبره رضا کېدل ، دعا د خېر کول ، آمین کول ، په خبره صلاح کېدل.

**اَمن بامن** :-( اَمن + با + مَ + نْ ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مر، مذ ] د ځلې (سختې یخنۍ) نه درې ورځې وروستو.

**اَمنه** :-(اَ+مَ+نَ) [پ (طفر ، محلي) ص] ناڅاپه ، ناګهانه ، دنیا مه ، بې طمعې.

**ـــــ راتلل** :-(اص) ناڅاپې راتلل ، بې طمعې راتلل ، دنیامه راتلل.

**اَموات** :-(اَمْ+وا+تْ) [ع،اس، مذ ، ج ، وا: موت] مرګونه ، مړۀ ، مړي.

چې را څرګند شول په کاروبار کښې
تر دې ژوند یو بهتر "اموات" دي     خوشحال

**اَموال** :-(اَم + وا + ل) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا: مال] مالونه ، دولتونه.

د ځوانۍ وخته که بیا راتلے په بېرته
ما به زار کړ تر خپل ځان واړه اموال     خوشحال

**اَموخت** :-(اَ + مو + خْ + ت) [فا ، ص ، مذ،وا] (وـــ آموخت) (ددې سره تعلق لرونکې ټول ټکي د آموخت په پټۍ کښې ګورئ).

**اَمه** :-(اَ + مَ) [اف : پ (قاموس) مؤ] اُمېد ، طمع.

**اَمه ورمه** :-( اَمه + وَ + رَ + مَ ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ، وا] د ببړو یا شپشتو یا سپېنتو د لوبو یو قسم د ے.

**اَمي** :-(اَ + مي) [ ع ، اُمّي ، ص ، وا ، ج : امیان] لُغ : د چا نه ئې چې سبق نۀ وي اخستے ، (۱) اص : بې علمه ، بې تعلیمه ، هغه څوک چې لیک لوست ئې نۀ وي زده.(۲) د ماشوم د پېدا کېدو په وخت چې مُلا راوبللے شي هغه ورته دعا کوي او نور واړۀ ورپسې امي وائي.دا ټکے د امین نه امي شوے د ے.دې رسم ته امي وئیلے شي.

زۀ امي په دا خبره نۀ پوهېږم
چې عالم ئې راته کا په مخرجونه     خوشحال

**اُمېد** :-(اُ + مي + د یا اُ + مې + دْ) [فا ، ص ، مذ، وا ، ج : امیدونه ، اُمېدونه] (۱) طمع ، اسره ، توقع ، اُمېند ، هیله ، خواهش ، آرزو.(۲) اتبار ، یقین ، بهروسه ، (۳) حمل ، خېټه ، ګېډه ، لکه : '' د فلانۍ اُمېد د ے ''

تــۀ د چا و جام تــه هیله اُمید مه کړه
حریفان دې باده نوش دې ستا له حامه
هېڅوک د طمعې امید پرې نــۀ کا
بــاران پــه ترېو کښتونو اووري     خوشحال

**ـــــ کول** :-(اص) (۱) اسره کول ، طمع کول ، هیله لرل ۲) اتبار کول ، یقین کول

**ـــــ کېدل** :-(اص) (۱) طمع کېدل ، (۲) یقین کېدل ، اتبار کېدل ، (۳)حمل کېدل ، خېټه کېدل ، ګېډه کېدل.

**ـــــ لرل** :-(اص) (۱) طمع لرل ، توقع لرل ، اُمېند لرل.(۲) اتبار لرل ، یقین لرل .

**ـــــ ورکول** :-(اص) طمع ورکول ، په طمع کول ، په اسره کښېنول.

**اُمېدوار یا اُمېدوور** :-( اُمید [ وار یا اُمید + وو + ر ) [ فا ، اس ، فاع ، مذ ،

وا ، ج : امېدواران ، اُمېدوورون ، (مؤ ، وا: اُمېدوار ، اُمېدواره ، ج : اُمېدواري ، اُمېدووري) ] (۱) توقع لرونکے ، اسره لرونکے ، ارزو يا خواهش لرونکے ، طمع لرونکے . (۲) په څۀ امتحان کښې شاملېدونکے (۳) د څۀ څيز په طمع او انتظار ناست .

اوس و ماته توان توفيق د طاعت راکړه

ستا د فضل او کرم تـــه اميدوار يم خوشحال

**اُمېدواره** :-( اُمېد + وا + ره ) [ پ تر ، اس، مؤ ، وا، ج : امېدوارې ] (۱) چې حمل ئې وي.په خېټه ، چې خېټه ئې وي.بلاربه ، چې ګېډه ئې وي.چې ښځه ئې درنه وي.(۲) د څۀ څيز طمع دار .

**اُمېدواري** :-( اُمېد، وا + ري ) [ فا ، ص ، مؤ ، وا، ج : اُمېدوارۍ ] (۱)طمع داري ، خواهشمندي ، (۲) حمل لرل ، خېټه کېدل ، اُمېد پيدا کېدل ، ښځه درنېدل (۳) د څۀ څيز په طمع کېدل.

ستا له لُطفه، زۀ لرم اميدواري خوشحال

**اُمېده** :-(اَ + مې + دَ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، مؤ ] د نوم شريک د نامې شريک ، په يو نُوم ، يو شان نومونه ، هم نام.

**اَمير** :-(اَ + مي + ر) [ ع ، اس ، مذ ، وا، ج : اميران ، اميرُون (مؤ ، وا: اميره ، ج : اميرې) ] (۱) دولت من ، شته من ، مالدار ، متل :- " امير ئې ورکوي شېخ مير ئې نۀورکوي " .(۲) سردار ، مالک ، غټ ، والي ، خليفه (۳) مسلمان بادشاه، د افغانستان د پخوانو بادشاهانو لقب.لکه: امير عبدالرحمان خان ، (۴) د پښتنو يو عام نوم.

ټپه: اميره ستا نوکران ډېر دي

د سپينې خولې نوکر راپرېږده چې راځينه!

پلار زما ؤ سوداګر په هسې شان

پـه خـدمـت بـه ئې ولاړ ؤ اميران نعمت الله

**اَميرانه** :-(اَ + مي + را + نه) [ فا ، ص ] (۱) د امير په شان ، د امير په ډول ، د غټانو په ډول.(۲) په شان سره ، په رعب داب ، شان دار (۳) د امير جرګه ، هغه څيز چې امير سره ښائي ، د امير وړ.

**اَمير بازي** :-(اَمير + با + زي) [اف : پ(قاموس) اس ، مو ، وا] د هلکانو يو لوبه .

**اَمير زاده** :-(اَمير + زا + ده) [ فا ، اس ص ، مذ ، وا، ج : اميرزادګان (مؤ ، وا : اميرزادګی ) ] (۱) د امير زوے (۲) شته من ، غټ سړے مالدار ، ځوان، دولت من (۴) يو عام نُوم.

**اَميري** :-( اَ + مي + ري ) [ فا،ص ، مؤ ، وا، ج : اميرئ يا اميرې ] (۱) دولتمندي ، مالداري ، شتۀ منتيا ، شتي مني ، دولت مندتوب (۲) عهده،د بادشاه عهده

که بادشاهي ده که وزيري ده

کـه خواجګي ده که اميري ده خوشحال

**اَميرے** :-(اَ + مي + رے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) د سپينو انګورو يو قسم (۲) يو قسم خربوزه.

**اَميزے** :-(اَ + مي + زے) [ پ (سو) اس ص ، مذ ، ج ] ماشوم چې د مور په غېږ کښې ټيپونه وهي ، اُوني پُوني ، خېزکې.

**اَمېغ** :-(اَ + مې + غ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] و ـــ آمېغ

**اَمېل** :-(اَ+مې+لْ) [ پ،اس، مذ ، وا، ج : امېلونه ، امېلينه ] و ـ امېل

که تمامي خوبان امېل د غاړې کړمه!

ما راورې تاله نۀ دي د سرو ګلو امېلونه غني

**اَمين** :-( اَ + مي + ن ) [ ع ، عب ، ص ، مذ ، وا] (۱) امانت دار ، امانتي اتباري،امانت ګر ، ايماندار (۲) محفوظ،بې ضرره (۳) محافظ ، سرپرست ، خزانچي ، (۴) د دُعا د قبلولو دپاره وئيلے شي.

**اَمينا** :-(اَ + مي + نا ) [ پ ، ع : آمنّا ] و ـــ امنا .

**اُمېند** :-(اُ + مې + نْ + دْ) [ پ، فا : اُمېد ، ص ، مذ ،وا، ج : امېندونه] (و ـــ اُمېد )

**اُمېندوار** :-(اُمېند + وا +ر) [ پ ، اس ،فا ع،مذ ، وا، ج: اُمېندواران (مؤ ، وا: اُمېندواره ، ج : اُمېندوارې) ] و ـــ اُمېدوار.

**اُمېندواره** :-( اُمېند+ وا+ ره ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا، ج : اُمېندوارې ] ( و ـــ اُمېدواره ).

**اَنا** :-(اَ + نا ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اناګانې ، اناوې] (۱) نيا ، انی ، نانا (سو) نېيو ، د پلار مور ، مور.

ـــ **کېدل** :-(اص) لُغ : نيا کېدل ، انی کېدل ، اص : د وړې جينۍ نه د لويو ښځو په شان کار کېدل ، د وړې ماشومې زيات هوښيارتوب

**زرغونه انا** :- (اف) اس معر ، د احمد شاه ابدالي مور.

**اَنا ورله انا** :–(اس ، مؤ) غوره نيا ، د نيا مور.

ـــ **مړه کېدل او تبه شلېدل** :-(اَف) مخ.يو کار ختمېدل ، څۀ واقعه ختمېدل، په يو رنګ يا بل رنګ د يو کار نه خلاصېدل ، دا يوه د پېچمې ده.ادې مړه تبه يې پرې ، ابی مړه شوه تبه ئې وشليده.

**اَنا الحق** :-(اَ + نَ + لْ + حَ + قْ) [ ع ، جمله ] لُغ : زۀ حق يم.اص : هغه نعره چې منصور د بې خودۍ جذب او استغراق په حالت کښې ويستلې وه.او عالمانو پرې د کفر فتوي ورکړه او په دار ئې کړو.

**اِناټومي** :-(اِ+ نا + ټو + مي) [انګ ، اس ، مؤ ، وا ] د بدن د اعضاؤ علم ، هغه علم چې په کښې د وجود ټولې حصې ښودلے شي.

**اِناد** :-(اِ + نا + د ) [ پ (عا) ع : عناد ، اس ، مذ ، وا] دُښمني ، بغض ، کينه ، تربګني ، حسد .

**اَنار يا انور** :-(اَ + نا +ر يا اَ + نو + ر ) [ فا ، اس ، مذ ، وا، ج : اناران، انارونه ، انورون ] وُولنګ ، نرګوسې ، وُونټک ، ( ۱) يو قسم غونډه شان دانې لرونکې مېوه ده.شربت ئې ډېر فائده من وي. (۲) مجازاً توياتيونو ته وئيلے شي.(۳) د معشوقې ښکلې سُور مخ ته وئيلے شي.(۴) د معشوق غاښونو ته د انار د دانو سره تشبيه ورکولے شي.

**رُبّ** ـــ :- (اص) رُب په عربی کښې نچوړ شوي عرق ته وئيلے شي.رب انار د انارو ټينګ شربت ته وائي.

**اَناردانه** :-( اَنار + دا + نه ) [ فا ، اس ، ص ، مؤ ، ج ، وا ] د انار تخم ، د نرګوسي دانه يا تومنه ،

**اَنارنګي** :-( اَنار + رَ + نْ + ګي) [ پ تر ، اس ص] لُغ : د انار په شان رنګ لرونکې. اص : (۱) سُور ، ښکلے ، ښائسته ، انارين ، سُور سپين (۲) يوسف : د نرسوي رنګ

**اَنارکلي** :-( اَنار + کَ + لي ) [ اس ، معر ، مؤ ، وا] لُغ : د انار غوټۍ ،(اص) (۱) د اکبر بادشاه د يوې ښځې عرف چې نوم ئې نادره بيګم وو چې د جهانګير معشوقه وه.(۲) د لاهور د يو مشهوربازار نوم

**اَنار ګل** :-( اَنار + ګُ + لْ ) [ پ تر ، اس ، مذ ، وا] لُغ : د انار ګل ، اص (۱) د پښتنو عام نوم (۲) د بې وفايۍ په ډول وائي چې " هغه خو د انار ګل شو " دا ځکه چې د انار ګل بوئي نۀ لري.(۳) ښائسته ، ډولے ، ښکلے.

**اَنار ګوړے** :-( اَنار + ګو + ړَے ) [ اف ، پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا] اننګوړے ، ورکوټے انار ، نرګوسے ، تريو ځنګلي انار ، هغه ځنګلي انار چې انار دانه ترې وزي

**اَنار ګوسه** :-( اَنار + ګو+ سه ) [ پ ( ب ،خ ) اس،مؤ،وا ، ج : انارګوسې) (۱) د انار ونه ، د انار بوټے (۲) د انار دانه.

**اَناري** :-( اَ + نا + رِي ) [ پ تر ، ص ] د انار په شان ، انار رنګې ، سُور سپين رنګيز ښکلے.

ـــ **سترګې** :-( اص ) سرې سترګې ، د کنايې په ډول شاعران د معشوق

ښکلو سترګو ته اناري سترګې وائي ـ يعني شرابي سترګې ، خمارې سترګې ، ډولې سترګې ـ

**اَنارين** :- (اَ+نا + رِيْ+ نْ) [ پ ، تر ، اس ، ص ] (و ـــ انار رنګې)

**اَناړي** :- (اَ + نا + ړي) [ پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : اناړيان ] ناپوهه ، بې تجربې ، اړينګ ، بې کاره ، بې تولې ، اماتور ، لکه : '' هغه ځۀ اناړي دے ''ـ

**اَناګي** :- ( اَ + نا + ګي ) [ اف : پ ( قاموس )اس،مؤ، وا ] (۱) د ماشومانو يوه لوبه ـ (۲) يو خړ شان چينجے ـ (۳) د انا اسم تصغير ، اناګۍ

**اَنالوړي** :- ( اَ + نا + لو + ړي ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا ] د يو بوټي نوم ـ

**اَنام** :- ( اَ + نا + م ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ] (۱) خلک ، خلکه ، مخلوق ، عوام اولس (۲) د وطن نوم ـ

**انام يا انوم** :- ( ا + نا + مْ يا ا + نو + م ) [ پ (عا) ع ، انعام ، اس ، مذ ، وا ، ج : انامونه ، انومونه ، انومينه ] لُغ : نعمت ، اص : د شاباسي په ډول چاته ځۀ ورکول ، د ښۀ کار بدله يا صله ، د غوره کار معاوضه ، لکه : '' دا ستا انام دے ''ـ

**انام** :- ( ا + نا + م ) [ پ (سو) ص ] بې کاره کېښناستل ، تيارې ته کېښناستل

**اَنامت** : (اَ+نا+ مَ+ ت) [ پ (سو) ع ، امانت ، اس ، مذ ، وا ] و ـ امانت

**ـــــ سلامت** :-(سو) اس مر ، (و ـــــ امانت سلامت)

**اَنانګه** :- (اَ+ نا + ن + ګَ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] يو غرئيز بوټے چې مېوه ئې د آلو بالو په شان وي ـ

**اَنانګه** :- (اَ+ نا + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) ، اس ، مذ ، وا ، ج : انانګي ] انتګے ، رُخسار ، باغن ، بارخو ، کوګے ، کوګےـ

**اَنانيت** :- ( اَ + نا + ني + يَ + ت ) [ ع ، ص ، مذ ، وا ] کبر ، زۀ ويل ، غرور ، تکبر ، خودبيني ، بل هيڅ ګڼل ، زۀ يم ، خودسري ـ لکه : '' انانيت بشري په بل ځۀ هسې نۀ ورکېږي ''ـ

**اَناوټ** :- ( اَ + نَا + وَ + ټْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ] (۱)نقصان تاوان ، خساره ، زيان (۲) سُود ، نفع ، منافع ، ګټه ـ

**ـــــ کول** :- ( اَف ) اص : (۱) نقصان کول ، تاوان کول ، زيان کول (۲) سود کول ، منافع کول ، نفع کول ، ګټه کول ـ

**ـــــ کېدل** :- ( اَف ) اص : (۱) نقصان کېدل ، تاوانېدل ، زيانېدل (۲) سود کېدل ـ

**اَنبار** يا **اَنبور** :-(اَ+ مْ + با + ر يا اَ + مْ + بو + ر ) [ فا ، اس ، مذ ، وا : ج انبارونه : انبورونه ، انبورينه ] (۱) و ـــــ امبار (۲) د يو کلي نوم

**په انبارو** :- ( اص ) په انبارونه ، ډېر زيات ، په دلو دلو ، کافي ، په ټوپونو ټوپونو ، په بارونو ، په ټوپکو ټوپکو ، په رشوـ

**ـــــ اَنبار** :-( اص ) ډېر زيات ، په لېږو ، په شخړو ، دلې دلې ، بې شماره ، بې حده زيات ، په ډېرو ډېرو ، په دلو دلو ـ په بارونو ـ

**ـــــ ماتول** :-(اص) (و ـــــ امبار ماتول)

**اَنبارخانه** :-( اَ + م + با + رْ + خا + نه ) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج: انبارخانې ] (و ـــــ امبارخانه )

**اَنبارو** :-(اَ + م + با + رَ + وَ + ل ) [ پ ، مص ، مت ] (۱) ذخيره کول ، ډېرې کول ، دلې لګول ، يو بل دپاسه کېښېښول ، (۲) په چا ذمه واري ورتپل ـ ما : انبارکۀ ، حا : انباروي ، ا : انبار به کي ، امر : انبارکه ـ

**اَنبارېدل** :-(اَ+ مْ + با + رې + دَ + ل ) [ پ ، مص ، لا ] (۱) ذخيره کېدل ، دلې لګېدل ، د يو بل دپاسه کېښېښولے کېدل ، (۲) په زړۀ د غمونو ډېرې جوړېدل په چا ځۀ ذمه واري پرېوتل ـ ما : انبار شۀ ،حا : انبارېږي ، ا : انبار به شي ـ

**اَنباز** :-(اَ + مْ + با + ز ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ] ملګرے ، مل ، ګډ

**اَنباله** :-(اَ + م + با + له ) [ اس ، معر ، مؤ ، وا ] د هندوستان يو ښهر

**اَنبالې** :-(اَ+ م + با + لې ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ] و ـ امبالې

**اَنبالې** :-( خل) اص : (۱) ډېرې ډېرې ، ويړې تنې ، لې ډلې ، پالې پالې ، خوور وور ، بوړي بوړي ، ويړ ويړ ، لکه : '' هغه انبالې انبالې راپرېوتلو ''ـ

**اِنبساط** :-(اِ+ مْ + ب + سا + ط) [ ع ، اس ، مذ ] خوشي ، خوشحالي ، مسرت ، طبيعت ازادېدل ـ

**اَنبُور** :-(اَ+ مْ+ بُو + رْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اَنبُورونه ] و ـ امبور

**اَنبُور** :- (اَ+ مَ+ بُو + رْ ) [ پ (ښو) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : انبورينه ] لوے مېدان ، غېراباد مېدان

**اَنبول** :-( اَ + م + بو + لْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] وير ، ژړا ، ماتم ، ساندې

**اَنبوه** :-(اَ + م + بو + ه ) [ فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ] ټولے ، ډېر خلق ، د خلقو ګڼه ، ځلے ، ډېروالے ، زياتوب ، جوپې ، ډلې ، ګڼه ګوڼه ـ

**ـــــ اَنبوه** :-( اص ) ټولي ټولي ، ټوپکي ټوپکي ، ډلې دلې ، جوپې جوپې ، ډېري ډېري ، په دلودلو ، په ډېرو ډېرو ، بېحده زيات ، په انبار انبار ، ځلے ، ګڼه ګوڼه ـ

**اَنبياء** :-(اَ + م + ب + يا ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا ، : نبي ] لُغ : خبر ورکوونکے ، اص : نبيان ، پيغمبران ، د خداوند پاک استاځي ـ

**اَنبېل** :-(اَ + م + بې + ل) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج ـ انبېلونه يا انبېلينه ] و ـــــ امبېل ـ

**اِنتباه** :-(اِ+نْ+ت + با + ه ) [ع ، اس ، مو ] خبردارے ، اعلان ، تنبيه ـ

**اِنتخاب** :-( ا + نْ + ت + خا + ب ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : انتخابونه ] لُغ: خوښول ، چونېل ، چوڼول ، غوره کول ـ اص :- د اسمبلۍ د امېدوارۍ دپاره مقابله چې عوام په کښې د رائې ورکولو حق لري

**اَنتر** :-(اَ + نْ + تَ + رْ ) [ پ (مهمل) اس ، مذ ] منتر ، جادو ـ

**ـــــ منتر کول** :-(اص) منتر چُف کول ، جادو کول ـ

**اَنترا** :-(اَ+ نْ + ت + را ) [ ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : انترې ] کړۍ ، ټيپ ، بند ، ځپه ، چپه ، په ساز کښې د موسيقۍ طرز ـ

**اَنتروشے** :-(اَ+ نْ + تْ + رُو + شے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: انتروشي] انړے ، انتېوسے ، نژے ، تروشے ، اتروُسے ، پرنجے ـ

**ـــــ راتلل** :-(اص) انړے راتلل ، انتېوسے راتلل ، نژے راتلل ، تروشے راتلل ، اتروشے راتلل ، پرنجے راتلل ـ

**ـــــ کول** :-(اص) انړے کول ، انتېوسے کول ، نژے کول ، تروشے کول پرنجے راتلل ـ

**اِنتساخ** :-( ا + نْ + ت + سا + خْ ) [ ع اس ، مذ ] رد کول ، منسوخ کول ، کرښه پرې راکښل ـ

**اِنتشار** :-(ا + نْ + ت + شا + ر ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ] (۱) پرېشاني ، غمجنتوب ، غمجنتيا ، فکر (۲) خورېدل ، ويرېدل ، غورېدل ، تس نس کېدل ، ګډ وډ کېدل (۳) بې اتفاقي ـ

**اِنتظار** :-(ا + نْ + ت + ظا + ر ) [ ع ، اس ، مذ ،وا ،ج : انتظارونه ] سترګې نيول ، لاره کتل ، اَسره ، اُمېد ، طمع ، حيله

**ـــــ کول** :-( اص ) لارې ته سترګې نيول ، لار کتل ، اسره کول ، اُمېد لرل ، طمع لرل ، حيله لرل ، لاره ساتل ، لاره څارل ـ

**اِنتظام** :-(ا + نْ + ت + ظا + م ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : انتظارونه ] پېيل ، بندوبست ، ترتيب ، ترکيب ، په تار کښې راتلل ، د څيزونو سمون ، برابرې ، تر سره کېدل ،

**ـــــ کول** :-( اص ) بندوبست کول ، ترتيب ورکول ، ترکيب کول ، د څيزونو

سمون راوستل ، برابرے کول ، په يو تار کښې راوستل منظم کول.

**ــــ کېدل** :-( اص ) بندوبست کېدل ، ترتيب ورکېدل ، د ځيزونو سمېدل ، برابر کېدل ، منظم کېدل.

**انتظامي** :-( ا + نْ + ت + ظا + مي ) [ پ تر ، اس ص ، مذ ، مؤ ] بندوبسي ، بندوبستي ، منتظم ، انتظام کوونکے ، د يو کار د بندوبست ور يا اهل ، د کار په ترتيب پوهېدونکے ، کار په ښۀ شان سرته رسوونکے ـ لکه : ''هغه انتظامي سړے دے ''.

**انتظاميه** :-(ا+ نْ + ت + ظا + ميْ + يَه ) [ ع ، اس ، ص ، مؤ ، وا ] د بندوبست کولو ټولے ، انتظامي ډله ، په انتظامي معاملاتو کښې لاس لرونکي ، انتظامي مجلس.

**انتفاع** :-(ا + نْ + ت + فا + عْ ) [ ع،اس،مذ ] ګټه اوچتول، نفع اخستل ، فائده کول يا پورته کول.

**انتقال** :-(ا + نْ + ت + قا + لْ ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : انتقالونه يا انتقالينه ] لُغ : يو ځاے نه بل ځاے ته کېدل،بدلي، اص (۱) مرګ ، د دنيا نه کډه کول ـ (۲) د زمکې جائيداد د يو سړي د نوم نه د بل سړي په نوم په سرکاري کاغذونو کښې خېژول ـ لکه : '' د زمکې انتقال راپسې وُشو '' (۳) پخوالے ـ لکه : '' څۀ انتقال دې راپسې کړے دے ؟ ''

**ــــ تصديق** :-( اص ) (۱) چې جائيداد د مال په کاغذونو کښې د بل چا په نوم درج شي ـ او د حکومت يو مجاز افسر ئې تصديق وکړي نو ورته انتقال تصديق وائي ـ (۲) اص : لوظ پوره کول ، د خبرې پُختن ، لکه : '' ښۀ انتقال تصديق راسره وکړه ''.

**ــــ خېژول** :-( اص ) زمکه د بل په نوم کول ، د مال په کاغذونو کښې خپله زمکه د پېسو په بدل يا هسې د بل په نوم کول.

**ــــ کول** :-(ص) (۱) مړ کېدل يا مړېدل ، رحلت کول ، ددې دنيا نه کوچ کول ـ (۲) و ــــ انتقال خېژول.

**ــــ نامه** :-( اص ) هغه سرکاري کاغذ چې په کښې د خلقو د جائيدادونو د انتقالونو تفصيل ليکلے وي.

**انتقالول** :-(ا + نْ + ت + قا + لَ + وَ + لْ ) [ پ ، مص مت ] (۱) بدلول ، يوځاے نه بل ځاے ته کول (۲) جا ئيداد د چا بل چا په نوم خېژول

ما : انتقال کۀ ، حا : انتقالوي ، ا : انتقال به کي ، امر : انتقال که

**انتقالي** :-(ا + نْ + تَ + قا + ليْ ) [ پ تر ، اس ، ص ، مذ ،وا ] (۱) د انتقال جوګه ، چې انتقال ئې کېږي ـ فا ع (۲) هغه څوک چې انتقال خېژوي ، جائيداد بل ته منتقل کوونکے ـ

**انتقام** :-(ا+ نْ + ت + قا + م ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : انتقامونه ] بدل ، بدله ، پور ، پېر ،

**ــــ اخستل** :-(اص) بدل اخستل ، پور اخستل

**انتقامي** :-(ا + نْ + ت + قا + مي ) [ پ تر ، ص ] د بدل په ډول ، د پور په طور ـ لکه : '' انتقامي کاروائي کول ښۀ خبره نۀ ده ''

**انتها** :-(ا + نْ + ت + ها ) [ ع ، اس مؤ ] آخر ، خاتمه ، حد ، انجام ، آخري ، بريد ، آخري حد ، تر آخره.

**ــــ ته رسېدل** :-(اص) اخري حد ته رسېدل ، اخري پوړۍ ته رسېدل ، حدته رسېدل ، ډېر غصه کېدل.

**انتيان** :- (ان + ت + يا + نْ ) [ پ (عا) ع : امتحان ، اس ، مذ ، وا ، ج: انتيانونه ] (و ــــ امتحان )

**اَنټر** :-(اَ + نْ + ټَ + رْ ) [ انګ : هنټر ، اس ، مذ ، وا ، ج : انټرونه ] چابک ، کروړه

**انټر** :-(ا + نْ + ټَ + رْ ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ] (۱) درميانه ، په مېنځ کښې ، اوسط ، منځومانه (۲) په اور ګاډي کښې د درېمې نه پورته او د دوېمې نه ښکته درجې ته انټروئي (۳) د انټرمېډيټ مخفف ، ثانوي.

**انټرمېډيټ** :-(انټر + مېْ + ډِ + يې + ټْ ) [ انګ : اس ، مذ ، وا ] ثانوي، دولسم جماعت ، د تعليم مېنځنۍ درجه.

**انټرنس** :- (ا+ نْ + ټْ + رِ + نْ + سْ ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ] لُغ : داخله ، د داخلېدو لار ، ننوتل ، د ننوتلو لار ، دروازه ، و ر ـ اص: لسم جماعت ، مېټرک.

**انټرنېشنل** :-(انټر + نې +ش+نَ+لْ ) [ انګ،ص،مذ ،وا ] بين الاقوامي ، د يو نه زيات ملکونو کښې مشهور ، عالمي.

**اَنټوسے** :-(اَ + نْ + ټو+سَے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : انټوسي ) و ـ انټروشے.

**اَنټېشے** :-(اَ + نْ + ټې + شے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ] (و ــــ انټروشے .

**اَنج** :-(اَ+ نْ + ج ) [ پ (ب ، خ ، وز ) ه : هينګ ، اس ، مذ ] انجه ، هَنج انجه ، هنجه ، اينجه.

**اَنجاغړی** :-(اَ + نْ + جاَ + غ + ړی ) [ پ ( سو ) ص ] تر غړی غړی ، خولې تر خولې ، تر خولې پورې ، پوره ډک ، لبالب ، ترستوي ډک ، تر پوزو ، تر خولې ډک ، د ګونو ګونو.

**اَنجام** :-(اَ + نْ + جا + م ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : انجامونه ] خاتمه ، اخر ، حد ، انتها ، نتيجه ،

**ــــ ته رسول** :-(اص ) سرته رسول ، ختمول ، مکمل کول ، پوره کول اخري حده پورې رسول ـ پائې ته رسول.

**ــــ ته رسېدل** :-( اص ) سرته رسېدل ، ختمېدل ، مکملېدل ، پوره کېدل ، اخري حدته رسېدل ، پائې ته رسېدل ،

**اَنجانه** :-(اَ + نْ + جا + ن + ړه ) [ پ (ګن) ه : انجان ، ص ] ناجانه ، بې خبره ، ناپوهه.

**ــــ کېدل** :-(اص ) په خبره ځان نۀ پوهول ، خواه مخواه ځان نه انجانه جوړول ، ناجانه کېدل ، تجاهل عارفانه.

**اَنجړ** :-(اَ+ نْ + جَ + ړِ ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، ج : انجړونه ، (مؤ ، وا : انجړه ، ج : انجړې ) ] بې سره مشوره ،هغه مشوره چې سر ئې معلوم نۀ وي ـ انجل بنجل ، اندل بندل ، ورانه مشوره ، جاخه.

**ــــ کول** :-( اص ) انجل بنجل کول ، اندل بندل کول ، بې سره ماشوره سازول ، ورانه ماشوره جوړول ، جاخه کول ، تارونه ګډ وډ کول ، يو بل کښې داسې ننبلول چې سر ئې نۀ معلومېږي.

**ــــ کېدل** :-( اص ) انجل بنجل کېدل ، اندل بندل کېدل ، بې سره ماشوره ، جوړېدل ، د تارونو د يو بل سره ننبلېدل ، جاخه کېدل

**اَنجړ بنجړ** :-(اَ+ نْ + جَ + ړِ + بَ + نْ + جَ + ړِ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، مؤ ،وا ، انجړه بنجړه ] ګډ وډ ، بې بنده ، پرېشان ، ورک ځاے

**انجړ پنجړ راوتل** :-(اص ) کولمې راوتل.

**انجکه** :-(ا + نْ + جَ + کَه ) [ اف : پ ( قاموس) اس ، مؤ ، وا ] انجه ، سوړيا اسوېلے، سړه ساه.

**ــــ وهل** :-(اص) انجه وهل ، سوړ اسوېلے ، سړه ساه ويستل.

**اَنجل بنجل** :-(اَ+ نْ +جَ + ل + بَ + نْ + جَ + لْ ) [ پ (صوابي ) اص ] الوول ، ګډ وډ ، تاؤ راتاؤ ، اندل بندل ، انجړ ، لکه : '' څومره چې بنيادم کاروبار کښې ترقي کوي ، کاروبار ئې لاانجل بنجل کېږي ''.

**اَنجم** :- (اَ+ نْ + جُ + مْ ) [ ع ، اس ، مذ ، جُ + مْ ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا: نجم] (۱) ستوري ، (۲) مؤ : د ښځو نوم ـ

**اِنجماد** :- (ا + نْ + جِ + ما + د ) [ ع ، ص ، مذ ] کرنګ کېدل ، يخ جوړېدل ، يخ

مایه کېدل ،اوبهٔ موره کېدل،اوبهٔ کنګو یا کنګل کېدل ، د اوبو نه واوره جوړېدل ، لکه : " په فلانې ځاے کښې حرارت د انجماد د نقطې نه ښکته دے ".

**اَنجمن** :-( اَ + نْ + جُ + مَ + نْ ) [ فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: انجمنونه ] مجلس ، محفل ، ټولے ، ګڼه ، غونډه ،

**اِنجن** :-( ا + نْ + جَ + ن + ړ ) [ پ ، (عا) انګ : انجن ، اس ، مذ ، وا ، ج: انجنونه ] مشین ، انجن ، لکه : " د موټر انجن ګرم شوے دے "

**اِنجڼه** :-( ا + نْ + جَ + نْ + ړَ ) [ پ (وز) اس ، مؤ ،وا] د سور رنګ ورکوټے کاڼے چې د بل کاڼي سره په سولولو رنګ اچوي او هلکان ئې په لاسونو لګوي. بګوه سُورمل.

**اِنجنیَر** :-( ا + نْ + جْ + نِ + یَرْ ) [ انګ : اس ، مذ ، وا ، ج : انجنیران یا انجنیرون ] انجنیر.

**اَنجوري** :-( اَ + نْ + جُو + رِيْ ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مؤ ] اورئے ، اوري ،ووري، شړشمو په شان یو قسم بوټے.

**انجه** :-( ا +نْ + جَه ) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ] ( و ـــ انج )

**اَنجه** :-( اَ +نْ + جَه ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مؤ ، وا] (و ـــ انجکه )

**اَنجیل** :-( اَ + نْ + جيْ + لْ ) [ یو ، اس معر ، مذ ] لُغ : خوشخبري ، زیرے ، اص : یو مقدس آسماني کتاب چې په عیسیٰ علیه السلام نازل شوے وو.

**انځر** :-(ا+نْ+ډزَ + رْ ) [ پ،فا ،انجیر : اس ، مذ ] یو توربخنه خوږه مېوه.

**انځر ګل** :-( اص ) د کنائې په ډول هغه چا ته یا څیز ته وئیلے شي چې په نظر نهٔ راځي.لکه : " فلانے خو د انځر ګل شو ".

**اَنځکي** :-( اَ + نْ + ډزَ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : انځکي] د ناروغه کس فریاد او زبېرګي یا زوبرګي ، زګوبرې.

**اَنځور** :-( اَ + نْ + ډزُ + وْ + رْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: انځورونه ] نقش نشان ، نخښه ، کنبیده ، انځور ، انزور ، نمونه ، علامت.

**اَنځورګر** :-( اَنځور + ګَ + رْ ) [ اف: پ (قاموس ) اس فا ع ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: انځورګره ، ج : انځورګرې ) ] نقش کوونکے ، نقاش کنبیده کوونکے ، نقش ګر

**اَنځورلے** :-( اَ + نْ + ډزُ + وْ + رَ + لَے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : انځورلي ، (مؤ ، وا: انځورلې ) ] نقش شوے ، کنبیده شوے

**اَنځورول** :-( اَ + نْ + ډزُ + وْ + رَ + وَ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] نقش کول، کنبیده کول.ما : انځور که ، حا : انځوروي ، ا : انځور به که ، امر : انځورکه (د حال نه علاوه نور افعال د انځور کول نه جوړ شوي دي ).

**اَنځوروُونکے** :-(اَ+ نْ + ډزُ + وْ + رَ + وو + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : انځوروُونکي ] .و ـــ انځورګر.

**اَنځورونه** :-( اَ + نْ + ډزُ + رْ + رَ + وَ + نه ) [اف : پ (قاموس) حمص ] کنبید ه ، د کنبیدې کار ، د نقاشۍ کار ،

**اِنچ** :-(ا + نْ + چْ ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : انچونه ] د انګریزي فټ دولسمه حصه ، انچې ، د کچ مېچ.

**په اِنچو پیمانو کار کول** :-( اص ) (۱) په ناز نخرو کار کول ، په مکېز کار کول (۲) په یو کار کولو کښې د ډېر تحقیق نه کار اخستل.

**اِنچارج** :-( ا +نْ + چا + رَ + ج ) [ انګ : انچارج ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: انچـارجان یا انچارجون ( مؤ : وا: انچارجه ، ج : انچارجې ] ذمه وار ، نګران ، د یو کار سربراه.

**اِنچې** :-(ا+نْ + چې ) [ پ ، اس ، مؤ ] (و ـــ انچ )

**اَنځې** :-( اَ + نْ + ډزَ + ی ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] نځې ، د وړې نرے تار یا مزے.

**اَند** :-( اَ + نْ + د ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ] (۱) د وخت اندازه ، د عمر یوه دوره ، ځنې خلق پنځوسو کالو ته اند وائي.(۲) خیال ،ګمان قیاس ، فکر ، پام ، (۳) اګې ، ها ، اویه ، یویه ، دویه ، (۴) طرف

**د خپل اند نه کار کول** :-( اص ) د خپل ځانه کار کول ، په خپل فکر او مجبورۍ یو کار کول ، په خپل اختیار څهٔ کار کول.

**اَنداز** :-( اَ + نْ + دا + زْ ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : اندازې ] (۱) حد ، مقدار (۲) طرز ، طریقه ، شان ، ادا ، (۳) قیاس ، ګمان ، خیال ، سمے

**اَندازه** :-(اَ + نْ + دا + زه ) [ پ ، ص ، مؤ ، وا ،ج : اندازې] (۱) تول ، ناپ ، کچ ، پیمانه ، پیمائش ، احتیاط (۲) قیاس ، خیال ، ګمان فکر ، پام

**ـــــ کول** :- ( اص ) ناپ کول ، قیمت لګول ، قیاس کول ، ګمان کول ، کچ کول.

**ـــــ لګول** :-( اص ) اندازه لګول ، جاچ اخستل ، تخمینه کول ، شمار کول ، ګڼل، کچ کول.

**اَنداغ** :-( اَ + نْ + دا + غْ ) [ پ (سو ) اس ، مذ ، وا] پېټے ، بار ، بوج ، پېټ ، پټ.

**اَندام یا اندوم** :-( اَ + نْ + دا + مْ یا اَ + نْ + دُو + مْ ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : اندامونه یا اندومونه یا اند ومینه ] د بدن یوه حصه ، بند

**ـــــ اَندام** :-( اص ) ټکرې ټکرې ، حصې حصې ، پوټې پوټې ، ببل ببل بند بند ، لکه : " غوښه اندام اندام پرې کړه ".

**ـــــ اَندام کول** :-( اص ) حصې حصې جوړول ، په ټکړو ټکړو جدا کول ټکړې ټکړې کول ، په ټکړو ټکړو پرې کول ، بند په بند پرېکول.

**اِندرا** :-(ا + نْ + دْ + را ) [ س ،اس ، مؤ ، وا ] (۱) ددولت دېوي ، د آریاؤ دېوتا (۲) د اندؤو ښځو نوم.

**اِندراج** :-(ا+نْ+دِ+را + جْ ) [ ع ، اس ، مذ ،وا ، ج : اندراجونه ] درج کول ، لیکل ، په کتاب خېژول ، لکه : " د ټولو نومونو اندراج وکړه"

**اَندرپایه یا اَندرپویه** :-(اَ + نْ + دَ + رْ + پا + یَه یا اَ + نْ + دَ + رغ + پو + یه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اندرپائې ] زینه ، پوړۍ ، پاړسنګ ، پوړچنګ ، پاړچنګ ،

**ـــــ لګول** :-(اص) لُغ : یو اوچت ځاے ته د ختو دپاره اندرپایه کښېښودل اص : د غلا دپاره د چا ځاے ته پوړۍ لګول او په هغې ورختل.

**اَندرتې** :-(اَند + رَ + تيْ ) [ پ ، اس ، مؤ ، ج : اندرتې ] د لاسونو ډولۍ

**اَندرتې** :-(اَ + نْ + دْ + ر+ تې ) [ پ ، ص] پټې ، ترلې ، بندې

**ـــــ سترګې کښېناستل** :-( اص) (۱) پټې سترګې کښېناستل ، سترګې نهٔ غړول . (۲) ځان په څهٔ خبره نهٔ پوهه کول ، ځان بې خبره کول ، انجانه کېدل ، سترګې پټول .

**اَندرغپ** :-(اَ + نْ + دَ + رْ + غَ + پْ ) [ پ ، ص ، مذ ، وا، (مؤ ، وا : اندرغپه ، ج : اندرغپې ] بې درکه ، توره تیارهٔ ، تورتم.

**اَندرکاغے** :-( اَندر + کا + غے ) [ اف ، پ (قاموس ) اس ، مذ ] د ماشومانو یوه لوبه ده . هلکان په زمکه او دېوال کرښې راکاږي په آخر کښې چې د چا کرښې زیاتې شي

هغه بر او نور لر شي.کوکړے ، اري بري ، سلاغاتے ، شلغاتے.

**اَندرکه** :-(اَ + نْ + دْ + رَ + کَه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اندرکې ] انګرکه ، نیم تنې ، د صدرۍ یا واسکټ په شان لنډه جامه ، شمیسي ، انګرکائي ، سپکه ګګره .

**اَندرور** یا **اندروړ** :-( اَ + نْ + دْ + رُو + رْ یا انْ + دْ + رو + ر ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اندروریانې ، اندراندې ] ننډرور ، ننډربر ، د خاوند خور.

**اَندرول** :-(ا+نْ+دْ+رَ+وَ+ل ) [ پ،مص،مت ]ګنډل،نواړې، ګېنده کول ،

**اَندرون** :-(اَ + نْ + دَ + رُوْ + نْ) [فا ، ص] (۱) دننه ، په مېنځ کښې (۲) زړهٔ ، باطن

**اَندروني** :-(اَ + نْ + دَ + رُو + نيْ) [فا ، ص ج دننه ، باطني ، حقيقي

**اَندره** :-(اَ + نْ + دْ + رَه) [پ (وز) اس ، مؤ ، وا ، ج : اندرې] څرخ ، يندره ، د چاړو چاقوانو د تېرهٔ کولو څرخ ، باټ د تېرهٔ کولو تيږه

**اَندربيل** :-(اَند + رې + يل) [پ (ب خ) مص مت] کنګالول ، وينځل په لوښي اوبهٔ تېرول ، پــه اوبــو سرسري صفا کول ، ما : واندربيهٔ ، حا : اندربيږي ا : وُبه اندربيږي ، امر : و اندربيه

**اَندرې يلې** :-(اَ ند + رې + يَ + لې) [پ ، (ب خ) مف ، مذ ، وا ، ج : اندرې يلي] وينځلې ، پرې وينځلې ، کنګال شوې.

**اَندرې يُونکې** :-(اَ + ن + دْ +رې + يُو + نْ + کې) [پ (ب ، خ) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اندريايونکي] وينځوُنکے ، پرې يونځوُنکے ، د پرې وينځلو وال ، په څهٔ څيز اوبهٔ تېروونکے ، کنګالوونکے.

**اَندړ** :-(ا + نْ + دَ + ړْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د وښو يو قسم چې ځناور ئې خوري.(۲) د پښتنو يو خېل.

**اند غړ** :-(ا + نْ + دْ + غَ + ړْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] انړ ، د ځناور د مستۍ حالت ، مجازاً د شوق د شهوت راپورته کېدلو حالت ، ټنډر.

**اَند غړن** :-(اَند + غَ + ړَ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] ګډ يا هر هغه ځناور چې پوره خصي شوے نهٔ وي او شهوت ئې راولاړيږي

**اَندک** :-(اَ + نْ + دَ + کْ) [فا ص ، مذ] لږ ، کم ، پوټسکے ، پُوتے ، پيسانے ، پيچوړے ، لکه : " چې اندک عذاب ئې يو ساعت وئيلې او اکثر ئې دي اويا زره کالونه " (اخوند قاسم)

**اَندکو** يا **اندکو** :-(اَند + کو + يا اندْ + کو) [پ ، اس ، مؤ ، وا] هندکو ، هندي ژبه ، د هندکيانو ژبه.لکه : " دا د اندکو پښتو خبرې دي ".

**اِندکے** :-(ا + نْ + د + کَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اندکيان] هندکے ، هغه سړے چې اندکو وائي.چې پښتون نهٔ وي.

**اَندل بندل** :-(اَ + نْ + دَ + لْ + بَ + نْ + دَ + لْ) [پ (سو) ص ج و ــ انجړ

**اَندو** يا **اندو** :-(اَ+ نْ + دُو يا ا + نْ + دُو) [فا : هندو ، اس ، مذ ، وا ، ج: اندوان ، اندوان يا اندوون ، (مؤ ، وا : اندوه ، ج : اندوې) ] لُغ : تور. اص : هندو ، د هندو مذهب منُونکے ،

**اَندواره** :-(اَ + نْ + دْ + وا + رَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : انداورې] اندازه ، قياس

**اَندوانه** يا **اندوانه** :-(اَ+ نْ + دْ + وا + نْ+ ره يا ا+ نْ+ دْ + وا + نْ + رَه) [پ ، اس، مؤ ، وا ، ج : اندَاونې] هندوانه ، اندوانه ، تربوز.

**اَندوخته** :-(اَ + نْ + دو + خْ + تَه) [فا ، اس ، مؤ] زېرمه ، ځوېرے ، بچت ، ګټه ، سنبال ، سګه ، جمعه داري ، پنګه.

**اَندوخت ګان** :-(اَ+ نْ + دو + خ + تَ + ګا+ نْ) [پ ، تر ، اس، مذ ، ج] جمع کوونکي،ساتونکي،زېرمه کوونکي،قبلوونکي ، ساتندويه.

**اَندُو کندُو** :-(اَ+ نْ + دُو + کَ + نْ + دُو) [پ ، ص] ډډ بډ ، اډوبډو ، پرسېدلے ، ټنډ منډ ، اَدُو بدُو ، لکه : " فلانے مچو وچيچلو اندو کندو شو ".

**اِندولي** :-(ا + نْ + دْ + وَ + لِيْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مؤ] د ځناورو د مستېدلو يا په شوق کښې د راتللو حالت ، اندغړ.

**اَندوه** :-(اَ + نْ + دو+ ه) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : اندوهونه] غم ، فکر ، اندېښنه، تشويش ، سودا ، مصيبت ، خطره ، يره.

**اَندوهګين** :-(اَندوه + ګي + ن) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا: اندوهګينه ، ج : اندوه ګينې) ] غمجن،غمګين ، دردمن ، غم زپلے ، خفه ، زهير ، خوار ، خسته ، اندوه ناک ،

**اَندوه ناک** :-(اَندوه + نا + ک) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا: اندوه ناکه ، ج : اندوه ناکې) ] و ـــ اندوه ګين.

**اَنده** :-(اَ + نْ + ده) [پ ، ع ، عنده ، اس ، مؤ] خيال ، فکر ، پام ، طرف ، لورې، ګمان ، نزد ، د ځان نه ، لکه : " د خپله انده مې داسې اووے ".

**په انده رضا کار کول** :-(اَف) اص : په خپله خوښه کار کول ، ښخي په خپلې خوښې کار کول ، د خپل فکر په سمون يو کار کول ، دې ته د خپلې اندې کار کول هم وائي.

**د خپله انده کار کول** :-(اص) د خپل طرف نه يو کار کول ، د چا د وينا بغير يو کار ته لاس اچول ، په خپل پام فکر کار کول ، د خپل ځانه کار کول.

**له انده پاس** :-(اَف) اص ، هغه کار چې په قياس کښې نهٔ راځي.د پام فکر نه اوچت ، د ګمان نه باهر.

**اِندهٔ** :-(ا + نْ + دَهٔ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] انړ ، ټنډر ، هغه حېوان چې خصي نهٔ وي.

**اِنده** :-(ا + نْ + دَ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] اينده ، يو ګوټ ، غوړپ ، تينګې (ګن) ليندهٔ.

ـــ **کول** :-(اف) اص ، په يو ساه څښل ، په يوه ليندۍ څښل ، په تينګۍ څښل (ګن) په يوه اينده څښل.

**اِنديا** :-(ا+ نْ + دْ + يا) [پ (وز) اس ، اش) دلته ، دلې ، دېخوا ، دې پلو.لکه "انديا روشه " دېخوا ر اشه.

**انديا سې** :-(ا + نْ + د + يا + سې) [پ (وز) اس] آئنده دپاره ، بيا دپاره مخې دپاره ، باديګر يا بازيګر ، يعنې بار ديګر.

**اَندېر** :-(اَ + نْ + دې + رْ) [پ ، ه : اندهير ، ص ، مذ ، وا] (۱) تيارهٔ (۲) ظلم ، زياتې (۳) سپېره ورځ ، غم (۴) بدبختي (۵) ګراني ، قحط ، کال (۲) بې قانوني ، افراتفري ، باچا ګردي.

ـــ **نګري** :-(اص) [ه : اندهيرنګري] بد حالې ، په ملک کښې شور شر.بې تپوسه حالت ، بد نظمې ، ړنده بادشاهي.افراتفري ، ناپُرسانه ښار ، پاچا ګردي.

**اَندېښمن** :-(اَ + نْ + دې + ش +مَ +نْ يا اَ + نْ + دې + خْ + مَ + نْ) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا (مؤ ، وا ، اندېښمنه ، ج : اندېښمنې) ] فکرمن ، غمجن ، غم زپلے ، غم خوړلے ، يرېدونکے.

**اَندېښنه** :-(اَ + نْ + دې + ش + نه يا اَ + نْ + دې + خ + نه) [پ ، فا: اندېشه ، اس، مؤ ، وا ، ج : اندېښنې] فکر ، غم ، خطره ، ويره متل : " توکل نر دے ، اندېښنه ښځه ".

**اَنړ** :-(اَ + نْ + ړْ) [پ (ګن) اس ، مذ ، وا، ج : انړان يا انړون] (۱) هنړ بلوري ، ګولۍ ، ګينۍ ، مړدکي ، ګټلي ، (۲) ځنګ ، اړخ

ـــ **لګول** :-(ب ، خ) اص ، اړخ لګول ، ډډه لګول ، د ارام کولو دپاره يوه شببه

څملاستل، تپک لګول ، لږ شانې سر لګول.سترګې ترخول.

ـــ **په انړ** :-(اص) اړخ په اړخ ، په يو ځنګ په بل ځنګ ، په يو لور په بل لور ، ډډې په ډډې.

ـــ **په انړ اړول** :-(اص) (۱) د څهٔ څيز کتلو دپاره په يو بل اړخ اړول ، انړ په انړ کول ، ډډې په ډډې اړول.(۲) د چا ښئوهل ټکول.

ـــ **په انړ اوړېدل** :-(اص) (۱) په يو ځنګ بل ځنګ اوړېدل ، ناقلارې محسوسول ، چاته خوب نهٔ ورتلل ، اړخ په اړخ يا ډډه په ډډه اوړېدل ، انړ په انړ اوښتل.(۲) د تورو په جنګ کښې لور په لور يا چارچاپېره جنګېدل.

ـــ **په انړ اوښتل** :-(اص) (و ـــ انړ په انړ اوړېدل)

**ـــــ په انډ کول** :-(اص) (وـــــ انډ په انډ اړول)

**اَنډائے** :-(اَ + نْ + ډائے) [پ (ب،خ،گن) اس، مذ، وا، ج : انډي] نیم بار، ورے د بار یوه حصه یا برخه، انډے، لکه : " دا انډائے راسره اوچت کړه "

**ـــــ تړل** :-(اص) د بار یو طرف تړل، ورے تړل،

**اَنډت** :-(اَ + نْ + ډَ + تْ) [پ، اس، مذ] (۱) اف : تیز، تیز، تیغ، باد، ډرت (۲) برېنګ، چې خولۀ ئې بې واکه وي ډُوزمار۔ (۳) د کجورو د اډوکي نه په سولولو جوړ شوے څیز چې هلکان پرې لوبې کوي۔ انډز۔

**اَنډر** :-(اَ + نْ + ډَ + رْ) [پ، اس، مذ، وا] ، (وـــــ اندهٔ)

**اَنډرکے** :-(اَ+نْ+ډْ+رَ+کَے) [پ، اس، مذ، وا، ج : انَډرکي] وـــــ اړېمے

**اَنډز** :-(اَ+نْ+ډَ+زْ) [پ (وز) اس، مذ، وا، ج : انډزون یا انډزان] (وـــــ انډت)

**انډس** :-(ا + نْ + ډَ + سْ) [انګ، اس، مذ، وا] اباسین۔

**اَنډک** :-(اَ + نْ + ډَ + کْ) [پ، اس، مذ، وا] (۱) اړخ، (۲) کوناټے۔ (۳) اص : ناز نخره، کېنج مکیز، نخرې پخرې، انډز، نخرې پېښې

**په ـــــ کښېناستل** :-(اص) په کوناټي کښېناستل، په داسې انداز کښېناستل چې د فخر او کبر پته ترې لګي، کوږ یا په ترڅ کښېناستل۔

**اَنډکان** :-(اَ+ نْ + ډَ + کا+ ن) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] د ژمي د دوؤ څېلو په مېنځ کښې موسم۔

**انډک سونډک** :-(اَ+ نْ + ډِکْ [سُو + نْ + ډِکْ] [پ، اس، مذ، وا] هغه سیلۍ او بادونه چې دژمي په آخر کښې چلېږي۔ سونډک مونډک

**ـــــ اَلوتل** :-(اص) سُونډک مُونډک الوتل، د انډک سونډک باد چلېدل۔

**اَنډل** :-(اَ + نْ + ډَ + ل) [پ (سو) انګ، هېنډل، اس، مذ، وا، ج: انډلونه] (۱) اینډل، هېنډل، د لاړۍ د سټارټ کولو دستکے، (۲) د بائیسکل وړاندې توله چې د مخکنۍ پايې دپاسه وي۔

**اَنډُو** :-(اَ + نْ + دُو) [اف : پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: انډوګان] د پُنبې ناسپړدې غوزه۔

**انډوخر** :-(اَ + نْ + ډو + خَ + رْ) [پ، اس، مذ، وا] (۱) د هلکانو د یوې لوبې نوم (۲) شور ژوړ، چغې سورې۔

**ـــــ جوړول** :-(اص) شور ژوړ جوړول، چغې سورې ګډول، خرتیزې وهل، بې تمیزي کول، هڼ کول، غوبل جوړول۔

**انډوغوئے** :-(اَ نْ + ډو + غُوئے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ، وا] د ماشومانو یوه لوبه چې د اوبو په مېنځ کښې کولے شي۔

**انډول** :-(اَنډ+وَلْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج : انډولونه] (۱) مقابله، تول، سمون، برابرے، انډوبل (۲) هیله اننبتے، په بهانه یا په شک اننبتے، هیله په شک اړ (۳) غاړه غړۍ، غاړه غتے۔

**ـــــ انډول پرېوتل** :-(سو) اص۔ غاړه غتے یا غاړه غړۍ څملاستل۔ خرې په خرې کېدل۔ لکه : " هله به دې زده شي چې انډول په انډول شپه شي "۔

**ـــــ کول** :-(اف) اص۔ (۱) مقابله کول، موازنه کول، د یو بل تول کول (۲) هیله په شک اننبلول یا اړ کول

**ـــــ کېدل** :-(اف) اص۔ (۱) مقابله کېدل، موازنه کېدل، برابرے کېدل (۲) هیله په شک اننبلېدل یا اړ کېدل۔

**د چا سره په ـــــ کښې لوېدل** :-(اَف) اص، د چا سره په مقابله کښې پرېوتل، د چا رقیب یا اریپ جوړېدل۔

**اَنډول** :-(اَ+ نْ + ډو+ لْ) [پ (خل) اس، مذ، وا] (وـــــ انډول) (کول، کېدل سره)

**اَنډول** :-(اَ + نْ + ډُوْ + لْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج : انډولونه] د دهات نه جوړه لنګرۍ۔

**اَنډولی** :-(اَ + نْ + ډُو + لی) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ، وا] کجاوه

**انډوبل** :-(اَ + ن + ډ + وې + ل) [پ، (ب، خ) ص] برابر، مساوي، د ټکرې، متوازن، ساري، سارے، سیال۔ لکه : " فلانے زما انډوبل نۀ دے "۔

**اَنډه** :-(اَ + نْ + ډَ) [پ (خل) ه : انډا، اس، مؤ، وا، ج : انډې] هغه اګۍ چې دواړه سره (څُوکه او چک یعني سرکونه) ئې مات وي۔

**اَنډے** :-(اَ+ نْ + دے) [پ، اس، مذ، وا، ج : انډي] وـــــ انډائے۔

**اَنډې** :-(اَ + نْ + ډې) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] خرمستي، انګتې یو بل سره د مستۍ نه لاس اچول، اینتې۔

**ـــــ کول** :-(اَف) اص۔ مستي کول، انګتې اچول، شېطاني او ورانے کول، اینتې کول

**اَنډۍ** :-(اَ + نْ + دی) [اف : پ (قاموس) ه : هانډې، اس، مؤ، وا] (۱) ښوروا، زومنه، زېمنه۔ (۲) کټوۍ، هغه لوښے چې ښوروا په کښې پخېږي۔

**ـــــ کټوۍ** :-(اص) اخلے پخلے، انډۍ کونډۍ۔

**ـــــ کټوۍ کول** :-(اص) اخلے پخلے کول، اندۍ کونډۍ کول۔

**ـــــ لګول** :-(اف) اص : په یوه څنګ په فخر او کبر کښېناستل۔ کوږ کښېناستل

**په یوۀ انډې کښېناستل** :-(اَف) اص : (وـــــ انډې لګول۔

**انډیا** :-(ا + نْ + ډْ + یا) [انګ، اس، معر، مؤ] هندوستان، بهارت

**اَنډي انډي** :-(اَ + نْ + ډي + اَ + نْ + ډي) [اف، پ (قاموس) ص] تیکې تیکې، ټوټې ټوټې، اندام اندام، انډے انډے، ټکرې ټکرې۔

**ـــــ پرېوتل** :-(اَف) اص : د زیاتې ستومانۍ د کبله په مزکه ډېرې ډېرې اودۀ کېدل، انډے انډے پرېوتل، خرانګې خرانګې پرېوتل، بې مجاله کېدل۔

**ـــــ کول** :-(اَف) اص : تیکې تیبیکې کول، ټوټې ټوټې کول، اندام اندام کول، انډے انډے کول، ټکرې ټکرې کول، چُوکاڼ چُوکاڼ کول ذرې ذرې کول، چوخانې چوخانې کول۔

**ـــــ کېدل** :-(اَف) اص، (۱) تکې تکې کېدل، اندام اندام کېدل، ټکرې ټکرې کېدل، ټوټې ټوټې کېدل، چوکاڼ چوکاڼ کېدل، (۲) ډېر زیات مانده کېدل، زیات بدحاله کېدل، ستړے کېدل، ذرې ذرې کېدل۔

**اَنډي پانډي** :-(اَ + نْ + ډِيْ + پا + نْ + ډِيْ) [پ (سو) ص ج (۱) اړخ په اړخ، انډ په انډ (۲) سست پست تګ، ناراست ناراست تلل، په پښسه قدم اخستل۔

**ـــــ اَوړېدل** :-(سو) اص : سست پست ګرځېدل، په پښسه قدم اخستل

**اَنډیاري** :-(اَ + نْ + ډ + یا + رِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ص] د پنډۍ غوښه، پسته۔

**ـــــ کښل** :-(اَف) اص : د خولۀ اچوونکي سپي د چا د پنډۍ غوښه راشوکول، د چا پسته شوکول۔

**اَنډېرے** :-(اَ+ نْ +ډې+رے) [پ،اس ،مذ، وا، ج : انډېري] (۱) پوزۍ، د مزرو جوړ پُوزکے۔ صف (۲) (ب خ) د مزرو نه جوړ پنډېرې چې غله په کښې ږدي۔ پرېړۍ، تراټۀ،

**ـــــ غوړول** :-(اَف) اص۔ (۱) پوزۍ په مزکه غوړول (۲) د کنائې په ډول سخاوت او مېلمستیا ورکولو دپاره استعمالېږي۔ پراخ دسترخوان، لکه : " فلاني خو انډېرے غوړولے "۔

**اَنډیري** :-(اَ + نْ + ډي + ري) [اف : پ (قاموس) ص، مؤ] ګڼه، غونډه، ډېر خلق، جمع، انبوه، ګڼه ګوڼه۔

**انډیمان** :-(اَ + نْ + ډي + ما + ن) [انګ : انډومان، اس معر، مذ] د هندوستان ګڼې جزیرې چې پخوا به ورته توري اوبۀ ئیلے شو۔ کالي دریاب، د انګرېزانو په زمانه کښې به عمري قیدیان هلته استولے شول۔

**انډیوال یا انډیوول** :-(اَ + نْ + ډي + وا+ ل یا اَ + نْ + ډِيْ + وو+ ل) [پ ه :

هانډيوال ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : انډيوالان ، (مؤ ، وا : انډي واله ، ج : انډي والې ] (۱) د خوراک ملګرے ، چې يو ځاے خوراک څښاک کوي ـ ملګرے ، په يوه څمڅۍ کټوۍ خوړونکے دوست ـ (۲) اص : ناجائز تعلقات ساتونکے سړے (سو) داسې ښځې ته انډيواله وئيلے شي

**اَنډيوالي** :-(اَ + نْ + ډي + وا + لِيْ) [ پ ، ه : هانډي والي ، اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : انډي والۍ ] د خوراک څښاک ملګرتيا ، ملګرتيا ، دوستي ،

**اَنذور** :-(اَ + نْ + ذو + رْ) [ پ ،ؤ اس ، مذ ، وا] (۱) کالي پټري ، ګاڼه ، زيورات (۲) ننبان ، نخښه (۳) نقش

**اَنرکه** :-(اَ + نْ + رَ + کَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] ورکوټے محل ، قلاګۍ ، ماڼۍ ـ

**اَنړل** :-(اَ + نْ + ړَ + لْ) [ پ (ګن) مص مت ] اُوړول ، اوړۀ کول ، دُوړه کول ، مېده کول ـ ما : وانړۀ ، حا : انړي ، ا : ا وُبه انړي ، امر وانړه

**په درنه مېچن ـــــ** : اص ـ لوئي کول ، کبر کول ، فخر کول ، ځان ته ځئوئيل ، ځان په څۀ کښې حسابول ، ځان ته توپۍ ، ځان څۀ ګڼل

**اَنړلے** :-(اَ + نْ + ړَ + لَے) [ پ (ګن) مف ) اوړۀ شوے ، مېده کړے شوے

**اَنړه** :-(اَ + نْ + ړَ + نَه) [ پ (ګن) حمص ] اوړۀ کونه ، مېده کونه ـ

**اَنړول** :-(اَ + نْ + ړَ + ول) [ پ ، مص مت ] (۱) غونډول ، يو ځاے کول ټولول (۲) منتخب کول ، چوڼ کول ، خوښول (۳) په بل اړل ـ

**اَنړولے** :-(اَ + نْ + ړَ + وَ + لَے) [ پ ، مف ] (۱) غونډ شوے ، يو ځاے شوے ، ټول شوے (۲) منتخب شوے ، چوڼ کړے ، غوره کړے چوڼلے ، خوښ شوے ـ

**اَنړُوونکے** :-(اَ + نْ + ړَ وُونْ + کے) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : انړوونکي ] (۱) انړونکے ، مېده کوونکے ، اوړۀ کوونکے (۲) منتخب کوونکے ، خوښوونکے ، چوڼ کوونکے ، چوڼوونکے ـ (۳) غونډوونکے ، يو ځاے کوونکے ، ټولوونکے

**اَنړېدل** :-(اَ + نْ + ړي + د + ل) [ پ ، مص لا] (۱) اوړۀ کېدل ، مېده کېدل (۲) منتخب کېدل ، چوڼ کېدل ، خوښېدل ، (۳) غونډېدل يو ځاے کېدل ، ټولېدل ـ

**اَنړېدل** :-(اَ + نْ + ړي + دَلْ) [ پ (وز) مص لا ] هنېدل ، د خرۀ جرېدل يا د اس هنېدل ، د خرۀ يا د اس د مستۍ اواز ، د خرۀ برړېدل ، د اس شيشنېدل ـ

**اَنړژي** :-(اَ + نْ + ړي + ژَي) [ پ (وز) اس ] (۱) د خرۀ يا د اس انړا يا هنېدل (۲) ب ، خ ګنګوسے ، اوازه ، لکه : "انړژۍ ئي راغې"

**اِنزال** :-(ا + نْ + زا + لْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا] لُغ : کوز يا کښته راتلل ، نازلېدل ، اص : اودس اوړېدل ، په خوب کښې د شېطان غولول غسل فرض کېدل ، لکه : " چې خوب اوويني او انزال ورسره وشي ، غسل هم پرې فرض کېږي" (اخوند قاسم)

**اَنزکے** :-(اَ + نْ + زَ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : انزکي ] شېطان هلک ، وران هلک ، وران وړوکے ، شېطونګړے علتي ، ورانکارے ماشوم ـ شېطان کوني ، شېطان ګوړے ـ

**اِنس** :-(اِ+نْ+سْ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ] بنيادم ، انسان ، بني نوع انسان ، ادم ذات ـ

**اَنساب** :-(اَ + نْ + سا + بْ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : نسب ] نسلونه ، شجرې ، نسبونه لکه : " خلاصة الانساب د پښتنو د شجرو يو مشهور کتاب دے " ـ

**اِنسان** :-(ا + نْ + سا + نْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : انسانان (مؤ ، وا : انسانه ، ج : انساني ) ] سړے ، بنيادم ،

**اِنساني** :-(ا + نْ + سا + نِيْ) [ پ تر ، ص ] د بنيادم سره تعلق لرونکے ،

**اِنسانيت** :-(ا + نْ + سا + نِيْ + يَتْ) [ ع ، ص ] سړيتوب ، بنيادم توب ، شرافت ، آدميت ، لکه : "په هغه کښې خود سره انسانيت نشته"

**اِنسپکټر** :-(ا + نْ + سْ + پ + کْ + ټَ + رْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : انسپکټران ، (مؤ ، وا : انسپکټره ، ج : انسپکټرې ) ] معائنه کوونکے ، جاج اخستونکے ، کار کتونکے ، پړتال کوونکے ، ايش مېټر ، سپيټر ـ لکه : "پرون مدرستې ته انسپکټر صاحب راغلے ؤ "

**اِنسپکشن** :-(ا + نْ + سْ + پ + کْ + شَ + نْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : انسپکشنونه ] جاچ ، معائنه ، کتنل ، پړتال ، لکه : " نن زمونږ انسپکشن ؤ " ـ

**اِنسټ** :-(ا + نْ + سَ + ټْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : انسټان ] (۱) د يو بوټي نوم چې مېوه نۀ کوي (۲) د يو بوټي نوم چې د زيړي د علاج دپاره ددوايۍ په ډول استعمالېږي ـ د مار د زهرو دپاره هم ترياق دے ـ

**اِنشا** :-(ا+ نْ + شا) [ ع ، لس ، مؤ ، وا ، ج : انشاګانې ] لُغ : د زړۀ نه څۀ خبره پيدا کول ، اص : ليک ، عبارت ، تحرير ، مضمون ، طرز ـ

**انشاء الله** :-(ا+ نْ + شا + ءَ + اللّٰه) [ ع ، کلمه شرطيه ] که خداے تعالىٰ ته منظوره وي ـ که د الله پاک رضا شوے وي ـ

**اَنصار** :-(اَ + نْ + صا + رْ) [ ع ، اس ، ص ، مذ ، ج ، وا : ناصر ] لُغ : مددګاران ، اص : رسول کريم صلى الله عليه وسلم ته د هجرت نه پس په مدينه منوره کښې مدد ورکوونکي صحابيان ـ

**اَنصاري** :-(ا + نْ + صا + رِيْ) [ ع ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : انصاريان] (۱) د عربو د يوې قبيلې نوم دے ـ چې په افغانستان او قبلئيز پاکستان کښې استوګنه کوي ـ (۲) د روښانيانو فرقې باني بايزيد ځان ته انصاري وے ـ (۳) د حضرت ابو ايوب[رض] انصاري په قسطنطنيه کښې مزار دے ـ

**اِنصاف** :-(ا+ نْ + صا + فْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : انصافونه ] عدل ، د حق فېصله ، بې مخ بې ملاحظې فېصله ـ

**د انصاف په سترګو** :-(اص) د حق په سترګو ، په رښتونې ، په حقه ،

**اِنصاف دار** :-(انصاف + دا + ر) [ فا ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : انصاف داران ، (مؤ ، وا : انصاف داره ، ج : انصاف دار ) ] (۱) مُنصف ، انصاف کوونکے ، عادل ، په حق فېصله کوونکے ـ (۲) د طنز په ډول بې انصاف ته داسې خطاب کوي ـ " چې انصاف داره دا کار خو اوکړه " ـ

**اِنصاف طلب** :-(انصاف+طَ+لَ+بْ) [ فا ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج (مؤ ، وا : انصاف طلبه ، ج : انصاف طلبې ) ] انصاف غوښتونکے ، حق لټوونکے ـ

**اِنصرام** :-(ا + نْ + صِ + را + مْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ] بندوبست ، تابيا ، بنا ، دار مدار ـ

**اِنعام** :-(ا + نْ + عا + م) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : انعامونه ] نعمت ، ډالۍ ، تحفه ، بخشيش ، سوغات ، بدله وصله ، د ښۀ کار کولو عوض ، ډووه

**ـــــ اخستل** :-(اص) اجر اخستل ، معاوضه اخستل ، بخشش اخستل د يو ښۀ کار په عوض کښې صله اخستل ـ

**ـــــ بخښل** :-(اص) انعام ورکول ، معاوضه ورکول ، بخشيش ورکول

**ـــــ ورکول** :-(اص) (و ـــ انعام بخښل)

**اَنعام** :-(اَ + نْ + عا + مْ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : نعم ] ځناور ، چارپائې تيارخور ، مفت خور ، ډوډي غرپ ، تيارلګ ،

**اِنعدام** :-(ا + نْ + ع + دا + مْ) [ ع ، اس ، مذ ] فنا کېدل ، بربادېدل ، فوفنا کېدل عدم کېدل ، مړۀ کېدل ـ

**اِنعکاس** :-(ا + نْ + ع + کا + سْ) [ ع ، اس ، مذ ] (۱) پر مخ کېدل ، په بل مخ اوړېدل ، اُلټه کېدل ، اپوټه کېدل ، (۲) عکس ، سورے ، منعکس کېدل ،

**اَنغسه** :-(اَ + نْ + غَ + سه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا: ج : انغسې] ورکوټې خوږه ډوډۍ ، کُلچه ، څوکۍ ، انګرېشۍ ، خوږه ډوډۍ خوږ ککوړے۔

**اِنفارمر** :-(اِ+ نْ + فا+رْ+ مَ + رْ) [ انګ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا] (۱) اطلاع ورکوونکے۔خبر رسوونکے ، (۲) جاسوس ، مخبر ، مُقبر ، مکبر

**اِنفارمېشن** :-(اِ + نْ + فا + رْ + مې + شَ + نْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا] خبر ، اطلاع ، معلومات

**اِنفرادي** :-(اِ+ نْ + ف + را + دي) [ فا تر ، ص ] یواځې ، ځان له ، فرداً فرداً ، ځان ځان له ، شخصي ، ذاتي ۔

**اِنفصال** :-(ا + نْ + ف + صا + لْ) [ ع ، اس ، مذ ] (۱) جدائي ، بېلتون ، بېلېدل ، شلاوُون (۲) فېصله ، د خبرې خلاصے ، شلاوند ، (۳) د شعر د زونونو په صنف۔

**اِنفعال** :-(اِ+ نْ + ف + عا + لْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا] (۱) شرمندګي ، شرمېدل ، ندامت ، ملامتیا (۲) د شعر کمزوري

**اِنفلوئنزا** :-(اِ+ نْ + ف + لُوْ + انْ + زا) [ انګ ، اس ، مؤ ] یوه وبائي بیماري ، د زکام تبه ، د بنیادمو تټغاکۍ۔

**اَن فن** :-(اَ + نْ + فَ + نْ) [ پ ، ص ] ان فان ، یو دم ، سمدستي ، د سترګو رپ کنبې ، هن پن ، په ایک کنبې ، لکه : '' په ان فن کنبې هلته ورسېدم''۔

**اِنفنټري** :-(اِ+ نْ + ف + نْ + ټ + ري) [انګ ، اس ، مؤ] پېدل فوځ ، پیاده پلټن

**اَنقره** :-(اَ+نْ+ق+رَ) [ تُر،اس،معر ، مؤ ] انګوره ، د ترکو دارالحکومت

**اِنقلاب** :-( اِ+ نْ+ق+لا +ب ) [ ع،اس ،مذ ، وا، ج : انقلابونه ] (۱) ادلېدل بدلېدل ، لاندې پاس کېدل ، او پاس لاندې کېدل ۔ (۲) د یو ملک د حکومت بدلېدل

**ـــــ راتلل** :-لُغ : بدلېدل ، یو څیز کنبې تغیر راتلل ، اص : په یو ملک کنبې بغاوت راتلل ، د یو ملک بادشاهي بدلېدل ، د یو ملک په نظام کنبې بدلون راتلل ، په یو ملک کنبې اړے ګړے راتلل۔

**ـــــ راوستل** :-لغ : بدلي راوستل ، تغیر پیدا کول ، لاندې باندې کول۔اص : د یو ملک په نظام کنبې بدلي راوستل ، په یو ملک کنبې اړے ګړے پیدا کول ، د یو ملک د خلقو ذهن بدلول۔

**اِنقلابي** :-(اِ+ نْ + ق + لا + بِيْ) [ پ تر،ص، مذ ، مؤ ، وا، ج : انقلابیان] انقلاب راوستونکے انقلاب پیدا کوونکے ، بدلون راوستونکے د انقلاب چغې ، نارې وهونکے۔

**اَنک** :-(اَ + نْ + کْ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] پېچمې ، ټوقې ، ملنډې ، نخوال ، وشتې ، خندا ، پچموزې ، پیښارې۔

**ـــــ وهل** :-(اَف) اص۔په چا پورې ټوقې کول ، په چا پورې خندا کول ، ملنډې یا نخوال کول۔په چا پورې پچموزې کول ، په چا پورې وشتې ویشتل ، په چا پسې ډوزې ویشتل۔

**اِنکار** :-(ا + نْ + کا +رْ) [ ع ، اس ، مذ ،وا ، ج : انکارونه ] خبره نهٔ منل مخالفت ، د اقرار ضد ،

**ـــــ کول** :-(اص) مخالفت کول ، څهٔ خبره نهٔ منل۔

**اِنکسار** :-(ا + نْ+ک+سا +رْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ] لُغ : ماتېدل ، اص : خاکساري ، عاجزي ، کسر نفسي ، کمه نیول ، لکه : '' هسې د انکسار نه کار اخلي ''۔

**اِنکشاف** :-(ا + نْ + ک + شا + فْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : انکشافونه ] لُغ : پرانستے کېدل ، پرده لرې کېدل ، اص : څرګندېدل ، د څهٔ واقعې پته لګېدل ، الهام کېدل ، د زړهٔ سترګې غړېدل ، ښکاره کېدل۔

**اِنکم** :-(ا + نْ + کَ + مْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ] آمدن ، ګټه ۔

**اِنکم ټېکس** :-(انکم + ټې + ک + س) [ انګ ، اس ، مذ ، وا] د امدنې ټېکس ، په ګټه باندې د حکومت د طرف نه ټېکس لګېدل۔

**اَنکو** :-(اَ + نْ + کُو) [ پ ، ه ، هندکو ، اس ، مو ] اندکو ، هندي ژبه ، د هندکیانو ژبه۔

**اَنکو** :-(اَ + نَ+ کو) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] (و ـــ اَنا)

**اَنکه** :-(اَ + نْ + کَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ] (و ـــ اَنا)

**اَن که** :-(اَ + نْ + کَه) [ پ ، حرف تاکید ) عن که ، که هر څهٔ وي۔تر دې پورې ، لکه : '' زهٔ به ضرور ځم اَن که څوک رانه سر پرېکوي هم'' متل : '' ژرنده په وار ده اَن که د پلار ده۔''

**اِنکے** :-(اِ+نْ+ کے) [ پ ، اس ، مذ ، وا، ج : انکي ، انکیان ] و ـــ اندکے

**اِنکے** :-(اِ+ نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، ج: انکي ] د دروغو ژړا ، هغه ژړا چې ناوې ئې د وادهٔ په وخت او ماشوم د څهٔ څیز حاصلولو دپاره کوي۔متل : '' دا پله مې وادهٔ کئ ، انکي مې ښهٔ زده ''۔

**ـــــ کول** :-(اف ) اص۔د دروغو ژړا کول۔

**اَنګ** :-(اَ +نْ+ګ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] مقابله، ضد ، مخالفت

**ـــــ راتلل** :-(اف) اص۔مخالفت پیدا کېدل ، مقابله راتلل ، د چا په څهٔ خبره په خپلو کنبې ورانېدل۔

**ـــــ ورته پورته کېدل** :-(اف ) اص ۔ د چا سرې په څهٔ څیز مخالفت او مقابله کول۔

**ـــــ وهل** :-(اف) اص۔د خرهٔ جر کول ، د خرهٔ اواز ایستل ۔

**انګا** :-(اِ+ نْ + ګا) [اف : پ (قاموس) ص ، مو ] د نوي پیدا شوي ماشوم ، د ژړا آواز۔

**اَنګا بَنګا** :-(اَ + نْ+ن ګا + بَ + نْ + ګا ) [ پ ، ص] اخوادېخوا ، دالې دُورې ، د یو ځاے بل ځاے ، د لرې لرې ، ګډ وډ ، یو غر بل غر۔

**ـــــ ویل** :-(اص) اخوادېخوا خبرې کول ، بې مطلبه خبرې کول ، ګډه وډه وېنا کول ، یو غر بل غر ویشتل ، بې سر و پښو وېنا کول۔

**ـــــ یو ځاے کول** :-(اص) د یو ځاے بل ځاے خلک راغونډول ، بېکاره بې مطلبه خلق یو ځاے کول۔

**د اَنګا د بَنګا** :-(اص) د یو ځاے د بل ځاے ،د مختلفو ځایونو ، ګډ وډ ۔

**اَنګا په بَنګا** :-(اص) لرې لرې پراتهٔ ، یوه په بله ، خوارهٔ وارهٔ ، اغه غر دغه غر۔

**اَنګار** :-(اَ + نْ + ګا + رْ) [ پ ، ه ، انګاره ، اس ، مذ ، وا ] (۱) د اور سکروټې ، سرې سروټکې۔بلې سکروټې ، سُور اور ۔(۲) تکلیف

**ـــــ جانبے لوهار جانبے** :-(مخ) دے پوهېږي او کار ئې پوهېږي۔دهٔ زده او چار ئې زده۔چې څهٔ ئې مرضي وي هغه دې کوي۔انګار پوهـ شه لوهار پوهـ شه۔

**ـــــ کول** :-(اف) اص۔د سکروټو یا سروټکو دومره بلول چې لوګے ختم شي او سرې راؤزي۔

**ـــــ کېدل** :-(اَف)اص۔د سکروټې یا سروټکو سرهٔ کېدل ، سرې سروټکې جوړېدل

**پر سرهٔ انګار کړېدل** :-(اف ) اص ۔ ډېر زیات کړېدل ، بې کچه تکلیف او کړاؤ رسېدل

**اَنګارل** :-(اَ+ نْ + ګا + رَ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] شمارل ، ګڼل ، اندازه لګول ، انګېرل ، څهٔ کار د چا د طرف شمارل۔ ما : وُانګارهٔ ، حا : انګار ، ا : وُبه انګاري ، امر : وُانګاره

**اَنګارلے** :-(اَ+ نْ + ګا + رَ + لَے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا، ج : انګارلي ] جاج اخستے شوے ، اندازه لګولې شوې، انګېرلے

**اَنګارنه** :-(اَ + نْ + ګا+ رَ + نه) [ اف : پ (قاموس) حمص ] انګېرنه ، شمارنه ، ګڼنه ، اندازه لګونه۔

**اَنګارُونکے** :-(اَ+ نْ + ګا + رُو + نْ + کے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فاع، مذ ، وا ، ج : انګارووُنکي ] انګېزوُنکے ، ګڼوُونکے ، شماروُنکے اندازه لګوُونکے

**اَنګاره** :-(اَ + نْ + ګا + رَ ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ، وا ، ج : انګازې] د غنم درُوزه ، خرنډ ، وَډ ـ

**اَنګارے** :-( اَ+ نْ + ګا + رَے ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: انګاري، ( مؤ ، وا ، ج : انګارۍ ) ] د غنمو د درُوزې نه وړې ټولوونکے ، د وډ نه وړې ټولوونکے ـ

**اَنګاري** :-(اَ+ نْ + ګا +رِيْ) [ اف : پ ( قاموس ) اس، مؤ ، وا ] د اوښانو د خېټې د درد بيماري ،

**اَنګارۍ** :-( اَ + نْ + ګا + رَۍ ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ، وا] د پښتنو يو مخصوص قميص يا خت چې په سوېلي علاقه ( سمت جنوبي ) کښې او د کوچيانو په علاقه کښې اغوستلے شي ـ

**اَنګازه** :-( اَ + نْ + ګا + زَه ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ، وا ،ج : انګازې] اوازه، انګېزه ، د اواز بېرته راستنېدل ـ

ـــــ **کول** :-( اَف ) اص ـ اوازه کول ، انګېزه کول ـ

ـــــ **کېدل** :-(اَف) اص ـ آوازه کېدل، اوازبېرته راستنېدل ، انګېزه کېدل

ـــــ **اَنګاے بنګاے** :-( اَ+ نْ + ګا ے + بَ + نْ + ګا ے ) [ پ ( ب، خ ) اس، مذ ، ج ] انګت بنګت ، انګک بنګک ، د ماشومانو په يوه قصه کښې د بچو نومونه ـ

**اَنګبين** :-( اَ + نْ + ګَ + بِيْ + نْ ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ] شات ، ګبينۀ ، ګبين ، ګوبين ، زَړنے ـ

**اَنګت بنګت** :-(اَ+ نْ + ګَ + تْ + بَ + نْ + ګَ + تْ ) [ پ ( ګن) اس ، مذ، ج] و ــ انګائے بنګائے

**اَنګته** :-( اَ + نْ + ګَ + ته ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا، ج : انګتې ] انښته ، ورانے ، شرارت ، شېطاني ، وران کاري ـ

ـــــ **اچول** :-( اص ) (۱) پنجه اچول ، لاس اچول ، د بل چا په ګوتو کښې ګوتې ننبلول ، (۲) جګړه يا فساد جوړول ، خوا مخوا ، ورانے کول جنګ په بيعه اخستل ، انښته کول ، اوبۀ خړول ـ

**اَنګتې پنګتې** :-(اَ+ نْ + ګَ + تِې + پَ + نْ + ګَ + تې ) [ پ (خل) اص] امبرچمبړ، انښته ، پرزونه ـ

ـــــ **کېدل** :-( اص ) امبر چمبړ کېدل ، لاس اچول ، په پرزونه ورتلل ـ

**اَنګرګے** :-(اَ+ نْ + ګ + رَ + ګے ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج: انګرګي ] هغه اور چې هلکان ئې بَلَوي ـ

**اَنګرمنګر** :-( اَ+ نْ + ګَ + رْ + مَ + نْ + ګَ + رْ ) [ اف: پ (قاموس) ص، مذ] (۱) ترل او قبدول ، ترل پرانستل ، (۲) منع کول ، بندېز ـ

**اَنګروزه** :-( اَ+ نْ + ګْ + رو + زه ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ، وا ، ج: انګروزې ] آوازه ، شهرت ، مشهورتيا ، خبره خورېدل ـ

ـــــ **اچول** :-( اَف ) اص ـ خبره د يو غوږ نه بل غوږ ته رسول ، خبره د خلقو مېنځ ته اچول ، خبره په خلقو کښې خورول ـ

ـــــ **کېدل** :-( اَف ) اص ـ يوه خبره مشهورېدل ، اوازه کېدل ـ

ـــــ **ګډول** :-( اَف ) اص ـ اوازه خورول ،خبره خورول، يوې خبرې ته باد ورکول ـ

ـــــ **ګډېدل** :-( اَف ) اص ـ ( و ـــ انګروزه کېدل )

**اَنګرېز** :-(اَ+ نْ + ګْ + رې + زْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا، ج : انګرېزان يا انګرېزون (مؤ ، وا : انګرېزه ، ج : انګرېزې ) ] فېرنګے ، پېرنګے ، ګوره ـ د انګلستان اوسېدونکے ـ

**اَنګرېزي** :-( اَ + نْ + ګْ + رې + زِيْ ) [ پ انګ ، انګلش ، اس، مؤ ، وا] (۱) د انګرېزانوژبه (۲) اص ـ ښۀ جوړ څيزته انګرېزي وائي ، ولايتي

**اَنګرېزے** :-( اَ+نْ+ګْ+رې+زَے) [پ، اس ص ، مذ ، وا] (۱) د انګرېزانو سره تعلق لرونکے (۲) اص : ښۀ او مضبوط جوړ شوے څيز

**اَنګړاتي** :-(اَ + نْ + ګ + ړا + تِيْ ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ] د ماشومانو يوه لوبه ـ

**اَنګړ بنګړ** :-(اَنګړ + ب + نْ + ګَ + ړ ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ] اَڼکي بَڼکي

**اَنګړي** :-(اَ+ نْ + ګَ + ړِيْ ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ] (۱) ناکه ، د اوبو د تقسيمولو بند ، (۲) يوه ونه ده چې سرې دانې کوي ـ

**اَنګړۍ**:-( اَ+ نْ + ګْ + ړۍ ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مؤ ، وا] د انګړ اسم تصغير ـ ورکوټے کور ـ

**اَنګړے** :-(اَ+ نْ + ګُ + ړَے ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ،وا ، ج : انګړي] ورکوټے انار ، انارګوړے ، انارګوټے ـ انګوړے ، انتګوړے ، انتګ ـ

**اَنګک بنګک** :-(اَ+ نْ + ګَ + کْ +بَ + نْ + ګَ + کْ ) [ پ ( سو + خل) اس مذ ، ج ] (ـــــ انګائے بنګائے )

**اَنګل** :-(اَ + نْ + ګَ + لْ ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ ، وا :ج انګلونه ] (۱) شور ژوږ ، هائے هوئي ، انګولا ، ژړا انګولا ، چغې سورې ، (۲) جنجال ، کشاله و ګرانه معامله ، لانجه ـ

ـــــ **ورته جوړول** :-( اَف ) اص ـ څوک په کشاله کښې راګېرول ، د چا په څۀ لانجه اړول ، په جنجال اخته کول ، چاته دُولۍ جوړول ، څوک په بده ورځ اخته کول

ـــ **لوېدل**:-(اَف) (۱) په شورژوږ کښې اخته کېدل (۲) په څۀ لانجه اوښتل

**په اَنګل اخته کول** :-( اَف) اص ـ څوک په څۀ کشاله اخته کول ، په څۀ غم اخته کول

**اِنګلستان** :-(اِ + نْ + ګ + لِ + سْ + تا + ن ) [ فا ، انګ ، انګلېنډ ، اس ، مذ ، وا ] ولايَت ، برطانيه ، د فېرنګيانو ملک ، انګلېنډ ـ

**اَنګڼ** :-( اَ+نْ +ګ + ڼ ) [ اف ، پ (قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج : انګڼونه ] (۱) د يو کور حويلي ، غولے ، صحن ، تالاے ، چارديواري او سرائې(۲) د شپې رزق يا خوراک ـ

**اَنګڼ** :-(اَ+ نْ + ګَ + ڼ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا، ج : انګڼوونه ] (ب ، خ ) شپول ، د جاړو بوټيو هغه ويړۀ يا باڼه چې د هغې دننه ګډې بزې اودرولے شي ـ

**اَنګوپېرے** :-(اَ+ نْ + ګُو + پې + رَے ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، ص ، مذ] انګرے ( سو ) يو خيالي پېرے ، په غرۀ کښې چې بنيادم چغه وباسي او هغه اواز ورته واپس راشي نو دې ته انګوپېرے وائي ـ د غرۀ اواز ، د کمر اواز ، د کوئي اواز ـ

**اَنګوټ** :-(اَ+ نْ + ګُوټ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : انګوټونه ] اکبوټ ، د اوبو ورکوټے جهاز ، ستيمر ـ

**اَنګور** :-(اَ+ نْ + ګُو + رْ ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : انګوران يا انګورون ] ( ۱) يوه مشهوره دانې داره مېوه ، کورَ ، مېلوَه ، ( وز ) (۲) په پرهار باندې چې کومه دانه داره غوښه شان جوړه شي ـ نو وائي چې پرهر ئې انګور نيولے دے ـ

**اَنګوتوره** :-( اَنګور + تُو + رَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : انګور تورې ] کچماچه ، مکو ، عنب الثعلب ـ

**اَنګوري** :-(اَ+ نْ + ګُو + رِيْ ) [ پ ، ص ] چې د انګور سره تعلق لري ـ د انګورو په شان ، انګور رنګې ـ

ـــــ **سرکه** :-( اص ) هغه سرکه چې د انګورو نه جوړه وي ـ

ـــــ **شراب** :-( اص ) د انګورو د رس نه تيار شوي شراب ،

**اَنګوړے** :-( اَ+ نْ+ګو+ړَے ) [ اف : پ (قاموس) اس،مذ ، وا ، ج : انګوړي ] ( و ـــ انګړے )

**انګوړے بنګوړي**:-(اَ + نْ + ګو + ړے + بَ + نْ + ګو + ړي) [اف: پ (قاموس اس، مذ] د ماشومانو يوه لوبه چې په ګرده دائره کښې د يو بل لاسونه نيولي تاوېږي.او انګوړے بنګوړي وائي.

**انګوزه** :-(اَ + نْ + ګو + زَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : انګوزې] (و ـــ انګازه)

**انګول** :-(اَ + نْ + ګو + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] تلاش ، لټون ، غوښتنه ، ډونډ ، سُوسکارنه ، سُونګ.

**انګولا** :-(اَ + نْ + ګو + لا) [اف :پ (قاموس )اس ، مؤ ، وا ، ج : انګولې] (۱) ژړا وير ، په اوچت اواز غوغا ، فرياد (۲) غپا ، د سپي اروړي ، اونګيلاے ، ګنګېلا ، اونګاے ، روړې ، د سپي سپېرۀ اواز .

ـــ **وهل** :-(اَف) اص . (۱) ژړا انګولا کول ، وير کول ، غوغا جوړول (۲) د سپي په يو خاص ډول غپا کول ، اروړې کول ، ونګېلائي کول ، ګنګېلا کول.اونګائې کول ، رُوړې وهل ، د سپي سپېرۀ آواز ويستل ، جغرۍ ايستل.

**په انګولا کېدل** :-(اَف) اص.(۱) فرياد کول ، ژړا انګولا کول ، وير کول (۲) د سپي اونګا کول.

**په ژړا انګولا کښېوتل** :-(اَف) اص.(۱) ژړا فرياد کول ، وير جوړول ، وير تنډور جوړول ، (۲) د سپي په خاص ډول غاپل.

**انګولل** :-(اَ + نْ + ګو + لَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] د سپي په خاص ډول غاپل ، اروړې کول ، اونګائې کول ، ګنګېلا کول ، ونګېلائې کول ، روړې وهل ، جغرۍ ويستل ، ما : وانګولل ، حا : انګولي ، ا : وبه انګولي ، امر : وانګول.

**انګولي** :-(اَ + نْ + ګو + لَ + لِيْ) [اف ، پ (قاموس) مف] اونګېدلے ، اروړې وهلې ، د سپي په زور چغې ، جغرۍ ايستلې شوې.

**انګولونکے** :-(اَ + نْ + ګو + لُو + نْ + کے) [اف ، پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : انګولُونکي] فرياد کوونکے ، غپا کوونکے ، اونګائې کوونکې ، جغرۍ ويستونکے.

**انګه** :-(اَ + نْ + ګـه) [اف ،پ (قـاموس) اس ، مؤ ،وا ،ج : انګې] (۱) اوازه (۲) دانا روُنه.

**اِنګه** :-(ا + نْ + ګَه) [اف: پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : انګې] اينګه ، هغه ښځه چې د ناوې سره د پلار د کوره د خاوند کره لاړه شي.او څو ورځې ورسره هلته تېرې کړي.

**اِنګهار**:-(ا + نْ + ګَ + ها + ر) [اف :پ (قاموس) ص ، مذ] د ناوې د سرخښې په وخت ژړا.

**اِنګے** :-(ا + نْ + ګے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] و ـ انګهار.

**اَنګے** :-(اَ + نْ + ګے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : انګي] اننګے ، باغون ، رخسار

**انګۍ** :-(اَ + نْ + ګۍ) [پ (ګن بنو) اس ، مؤ ، وا] (۱) ډېر نرے غلبېل يا پرويزے ، مهين غلبېل ، (۲) اګۍ ، ها ، يويه ، وويه.

**انګۍ** :-(اَ + نْ + ګۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) هغه اواز چې د غرۀ نه واپس راګرځي . صدائے بازګشت ، کړنګار (۲) د هلکانو يوه لوبه ، مچې بچې ، پټ پټونې ، په دې کښې هلکان اواز کوي چې:" انګۍ مل دې څوک دے ؟انګۍ غوا اخلې که سخے"

**اُنګے** :-(اُ + نْ + ګے) [پ (ب ، خ) اس ، صو ، مذ ، وا ، ج: اُنګي] اواز خاص طور سره د خرېۀ يا د ګيدړ اواز .

**انګيا** :-(اَ + نْ+ګ+ يا) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: انګياوې](۱) د ښځو تي ترونے يا سينه بند ، (۲) بنيان.

**اَنګيټۍ** :-(اَ + نْ + ګيْ + ټۍ) [پ ، ه : انګيټي ، اس ، مؤ ، وا ، ج : انګيټې] انغرے ، د اور لوښے ، د اور بلولو ځاے ، اتش دان ، هغه لوښے چې سکارۀ په کښې بلول شي . د کوټې په دېوال کښې د اور بلولو دپاره ځاے.

ـــ **تودول** :-(اص) په انګيټۍ کښې اور بلول.

ـــ **ګرمول** :-(اص) (و ـــ انګيټۍ تودول)

ـــ **لګول** :-(اص) (و ـــ انګيټۍ تودول)

**انګېرل** :-(اَ+نْ + ګې + رَ + لْ) [پ ، مص مت] خيال کول ، تصور کول فرض کول، څۀ کار د چا د مخې شمارل ، ګمان کول ، اندازه کول ما : وانګېرۀ ، حا: انګېري ، ا :وُبه انګيري ، امر : وانګېره.

**انګېرلے** :-(اَ + نْ + ګې + رَ + لَے) [پ ، مف ج ګمان کړے شوے ، خيال کړے شوے.فرض کړے ، ګڼلے شوے ، قياس کړے ، اندازه لګولے.

**انګېرنه** :-(اَ + نْ + ګې + رَ + نَه) [پ ، حمص] ګمان کونه ، خيال کونه اندازه ، قياس

**انګېرونکے** :-(اَ + نْ + ګې + رُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: انګېرونکي] ګمان کوونکے ، خيال کوونکے ، ګڼوونکے ، قياس کوونکے ، اندازه لګوونکے.

**انګېرۀ** :-(اَ+ نْ + ګې + رۀ) [پ ، حمص] (و ـــ انګېرنه)

**انګېز** :-(اَ + نْ + ګې + زْ) [فا ، اس ، مذ، وا ، (مؤ : انګېزه)] اوچتوونکے، لمسوونکے،ترغيب ورکوونکے، تحريک ورکوونکے رالړزونکے.

**انګېل** :-(اَ + نْ + ګې + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] د لوهار مُزد يا مزدوري ، دأُستکار ماوُود ، د لوهار کالېن.

**اَنَد** :-(اَ + نَ + نْ + دْ) [ه ، ص ، مذ ، وا ، ج : انندونه] (۱) خوشي خوشحاله خوشحالي ، بس بسياري ، ارام ، راحت ، سوکالي ، (۲) (اف) شُکر ، مننه.

**اَننګ** :-(اَ+نَ + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ،وا ، ج : اننګونه](و ـــ انګه)

**اَننګ** :-(اَ + نَ+نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د کچې خچې ، کچڼې يا چيچڼې او وزيرې ګوټې ګروت ، اص : ډېره کمه فاصله

**اَننګوړے** :-(اَ + نَ + نْ + ګُوْ + رَ ے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اننګُوړي] (و ـــ اننګُړے)

**اَننګے** :-(اَ + نَ + نْ + ګَے) [پ ، اس ، مذ ، وا، ج : اننګي] (۱) و ـ انګے (۲) (اف) د ښځې تے (د شاعرانو اصطلاح)

**اَنو** :-(اَ + نُوْ) [اف : پ (قاموس) اس،مذ] کارۀ ، سونف ،کاږۀ ويلني

**اَنوار** :-(اَ + نْ + وا + رْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : نُور] رڼاګانې ، پلوشې ، د زړۀ رڼا ، نور قلب.

**اَنواع** :-(اَ + نْ + وا + ع) [ع ، اس مذ ، ج ، وا : نوع] قسمونه ، قسماقسم ، رنګ په رنګ ، توک توک.

ـــ **اَنواع** :-(اص) قسماقسم ، رنګ په رنګ ، توک توک ، رنګارنګ

**اَنوبله** :-(اَ + نْ + وَ + بْ + لَه) [اف : پ (قاموس) اس ، ص] هغه اس چې زين پرې نه وي.بې زينَ اس ، شاه تورے اس.

**اَنوټ** :-(اَ+ نو + ټ) [اف : پ (قاموس) ، ه ، اَنْوَټْ ، اس، مذ] د کتې ګوتې ګُوتې . هغه ګُوتې چې پخوا زمانه کښې به زنانۀ د پښې په کتې ګوته کښې اچوله .انوټ (ګن) اوس ددې رواج نشته.

**اَنودنۍ** :-(اَ + نْ + وَ + دَنۍ) [پ (ب ، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : انودنۍ] او مدنۍ،وندنے ، د وښو يا د لرګو ګېډے چې د وښو په ناغښتې پرې غونډې ترې ، دې ترونې ته وائي.

**انور** :-(اَ + نْ + وَ + رْ) [ع ، اس ، ثفض ، مذ ] (۱) ډېر روښانه ، زياتې پلوشې لرونکې ، ځلېدونکې ، ډېر نوراني ، زيات روڼ (۲) يو عام نوم.

**انور پاشا** :-(اَ نور + پا + شا ) [اس ، معر ، مذ ، وا ] د ترکو يو نامتو جرنيل چې د بالشويکو سره په غزا کښې شهيد شو.

**اَنه** :-(اَ + نَه) [اف : پ (قاموس) اس،مؤ،وا،ج : انې ] (۱) زين (۲) هغه بټنې يا ګروې چې په قميص پورې د ښائست دپاره ټکوهلې شي . ګل مخې. (۳) طاقت (۴) د څلورو پيسو سکه (اوس ددې رواج نشته)

**انه** :-(ا + نَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : انې] اينه ، ينه ، ځيګر ، ائينه.

**اَنَي** :-(اَ + نَي ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا : اينګانې ] (۱) نيا ، انا ،د مور مور (۲) هرې مشرې ښځې دپاره د خطاب لفظ (۳) هغه وړه جينۍ چې د عمر په لحاظ زياته چالاکه او هوښياره وي.مشروتۍ ، ويتکۍ.

**اَني** :-(اَ + نيْ ) [پ ، حرف ، ندا ] ني ، يه خورې ! يه ښځې ! دوه همزولې جينکۍ يا ښځې چې د يوې بلې سره خبرې کوي نو داسې وائي : '' اني ! دا خو واوره که نه ''.

**اِنې** :-(اِ + نې) [پ (يو) حرف ندا] د وينې مخفف ګوره، چا سره چې خبره کول غواړې نو هغهٔ ته داسې خطاب کوي.لکه:''انې!دا کار داسې وکړه ''

**اَنيز** :-(اَ + نيْ + زْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : انيزونه ] (و ــ انه )

**اَنيسون** :-(اَ + نيْ + سُوْ + نْ ) [فا ، اس ، مذ ] کړه وېلنه ، سوپ ، د سوپې تېمنه (وز) د سونف يا کړو تخم.

**او** :-(او) [پ ] (۱) حرف ندا ، د ړغ کولو دپاره.لکه : ''او سړيه ! '' (۲) (اف) ماشومان د غوا شړلو دپاره د ړغ کوي.

**اؤ** :-(اَ + ؤ ) [پ ] (۱) د ځواب حرف ، لکه : هو ، هاؤ ، هې ، ښه ، بېشکه ، ضرور . لکه : '' او کنه ! '' (۲) حرف عطف ، د دوو خبرو د يو ځاے کولو دپاره لکه : '' زهٔ او تهٔ '' (۳) (اف) خواهش ، شوق اشتها .

**ــــ او** :-(اس معر) هوهو ، هاں هاں ، ښهٔ ښهٔ

**اوا** :-(اَ + وا ) [پ (عا) فا : هوا ، اس ، مؤ ، وا ] (۱) هوا ، باد ، اېشمه اوو . لکه : '' توده اوا چلېږي'' (۲) غرور ، کبر ، لوئي لکه : ''فلانے ډېر په اوا کښې ګرځي.''

**ــــ په سر کښې درلودل** :-(اَف) اص.اوا په سر کښې لرل ، مغرور او کبرجن اوسېدل

**ــــ په سر کښې کېدل** :-(اَف) اص.اوا زياتېدل ، مغروربدل ، اوا ورته کېدل ، سر هوا کېدل.

**ــــ په سر کښې ورلوېدل** :-(اَف) اص.مغروربدل ، کبرجن کېدل ، لوئي کول

**ــــ ورته کېدل** :-(اَف) اص.څهٔ څيز ته زړهٔ کېدل ، د څهٔ څيز دپاره خواهش پېداکېدل.

**ــــ ورکول** :-(اص) لُغ : څهٔ څيز ته باد ورکول ، د باد نه ډکول ، اص : (۱) څوک د څهٔ کار دپاره لمسول ،(۲) د څهٔ خبرې څرګندول څهٔ خبره مشهورول

**په اُو اَوا کښې** :-(اص) په مزو کښې،په عېش عشرت کښې ، په چورُوت کښې ، په هُو هو کښې ، په ښهٔ ورځ کښې.

**اَوار** :-(اَ + وا + ر ) [پ ، فا : هموار ، اس ، ص ، مذ ، وا، مؤ ، وا : اواره ، ج : اوارې ) ] (۱) هموار ، هوار ، يو شان ، يو برابر ، ډاګه مېدان ، تلې ، لکه : ''دا پټے اوار کړه '' (۲) چپاؤ ،تاراج ، شوکه، لوټ (۳) خور ، غوړېدلے ، ويړ.

**ــــ تلل** :-(اص) په يو شان تلل ، په برابر رفتار تلل ، په داسې چال تلل چې بدن زيات خوزي را خوزي نه.

**ــــ ښوے** :-(اَف) اص.اوار کړے ، يو شان شوے ، داسې جوړ شوے چې لوړ ژور نهٔ وي.د تلي په شان اوار.

**ــــ کړے** :-(اص) (و ــ اوار شوے)

**ــــ مخ** :-(اَف) اص.د څهٔ څيز مخ چې يو برا بر وي.داسې څيز چې کوز پاس يا لوړ ژور نهٔ وي په کښې.

**کور دې ــــ شه** :-(اص) ( بد دعا يا ښيرې ) کور دې تباه شه.کور دې لوټې لوټې شه.کور دې ړنګ شه ، کور دې وران شه.

**اوارول** :-(اَ+ وا + رَ + وَ + لْ) [پ ، مص ، مت ] (۱) همواروِل ، يو شان کول ، برابرول (۲) لُوټ کول ، لُوټل ، چپاؤ کول ، تالا کول.(۳) هېرول ، ما : اوارکهٔ ، حا : اواروِي ، ا : اوار به کې ، امر : اوار که.(د حال نه سِوا نور فعلونه د اوار کول نه اخستې شوي دي)

**پرخو اور ــــ** :- (اف) اص.څهٔ ناپسنده په داسې شان د بل چې د اوربدونکي طبيعت ئې واخلي.څهٔ بده خبره په ښهٔ طريقه پېش کول.

**مزکې سره ــــ** :- اص : (۱) مزکې سره سمول ، مزکې سره مزکه کول . (۲) مجازاً تباه کول ، ورانول ، لُوټل.

**اوارونه** :-(اَ+ وا + رَ + و + نَه ) [پ ، حمص ] هوارونه ، څهٔ څيز يا د مزکې مخ برابرونه يا يو شان کونه ، لوړې ژورې يو برابر کونه.

**اوارووُنکے** :-(اَ + وا + رَ + وُو + نْ + کَے ) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع مذ ، وا ، ج : اوارووُنکي ] (۱) هوارووُنکے ، يو شان کوونکے ، برابروونکے . (۲) اص . څهٔ خبره جوړوونکے ، د دوؤ کسانو په مېنځ کښې څهٔ لانجه ختموونکے ، صلح راوستونکے

**اواره** :-(اَ+ وا + رَ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ ، وا : ج :اوارې] (۱) هواره ، يو برابر (۲) جوړه ، روغه ، جوړه ، صلح صفائي.

**ــــ اوارې** :-(اَف) اص.(۱) د مزکې مخ چې يو برابر وي.په څهٔ څيز کښې چې لوړه ژوره نهٔ وي (۲) صلح صفائي ، د څهٔ معاملې سمول

**اوارېدل** :-(اَ+وا+رې+دَ + ل ) [اف : پ (قاموس) مص لا] (۱) هوارېدل يو شان کېدل ، ډکېدل (۲) سمېدل ، د څهٔ څيز درستګي کېدل (۳) هېرېدل .ما : اوار شهٔ ، حا : اوارېږي ، ا: اوار به شي.(د حال نه سېوا نور فعلونه د اوار کېدل نه اخستې شوي دي)

**پر خوا ــــ** (اف) اص.څهٔ خبره په طبيعت سمه راتلل ، داسې خبرې اوربدل چې زړهٔ ئې واخلي.څهٔ خبره اړخ ته پرېوتل.

**اوارېدنه** :-(اَ+ وا + رې + دَ + نه ) [اف : پ (قاموس) حمص ] هوارېدنه برابرېدنه، يو شان کېدنه.

**اوارېدونکے** :-(اَ + وا + رې + دُو + نْ + کَے ) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : اوارېدونکي ] چې اوارېدے شي . چې د اوارېدو جوګه وي . چې اوارېږي.چې د اوارېدو درک پکښې وي.

**اوارېدهٔ** :-(اَ + وا + رې + دهٔ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ــ آوارېدنه

**اواز يا اووز** :-(اَ + وا + ز يا اَ + وو + ز ) [پ ، فا ک آواز ، اس ، مذ ، وا، ج : اوازونه ، اووزونه يا اووزينه ] . (و ــ اواز)

**ــــ په غوږ کېدل** :-(اص) اواز اورېدل ، ړغ تر غوږ کېدل .

**ــــ راتلل** :-(اص) ړغ راتلل ، شور راتلل ، اواز تر غوږ کېدل ، ګنيژې يا ګنګوسے راتلل.څهٔ اوربدل ، په سرسري طور اورېدل.

**ــــ راختل** :-(اص) ړغ راختل ، د څهٔ خبرې مشهورېدل ، ګنګوسے غوږ ته راتلل.

**ــــ کول** :-(اص) (۱) ړغ کول ، رابلل (۲) د څهٔ کار په حقله په اوچت ړغ خپله رائې څرګندول (۳) د پېغلې جينۍ د کور وړاندې دا ړغ کول چې دا زما چنغله شوه بل څوک به ئې تپوس نهٔ کوي.دې ته اواز کول وائي.(۴) په مريض د مهلک مرض ړغ کول ، (۵) په تيارهٔ کښې د چا نامعلوم کس نه د خپل پردي تپوس کول.

ــــ **کېدل** :-(اص) (۱) ږغ کېدل ، ږغ خورېدل ، خبره خورېدل (۲) د چا د مرګ خبر راتلل ، د مرګ اواز ګرځېدل (۳) چا ته په زړهٔ کښې اګاهي کېدل۔

ــــ **ورکول** :-(اص) (۱) ژغ کول ، بلل ، (۲) چا ته د مقابلې دپاره اواز ورکول ، څوک بېدارول۔

**غېبي ـــ راتلل** :-(اص) الهام کېدل ،د غېب نه خبر راتلل ، د څهٔ خبرې په حقله په زړهٔ کښې وسوسه پېدا کېدل ، غېبي اواز کېدل ، اګاهي کېدل ، د هاتف اواز راتلل

**غېبي ـــ کېدل** :-(اص) (وـــ غېبي آواز راتلل)

**نرے آواز** :-(اص) (۱) په معمولي ږغ ،په لړ شک ، (۲) په نري اواز خلق ځان سره سندرې وائي۔

**آوازه يا آووزه** :-(اَ + وا + زه يا اَ + وو + زَه) [ پ ، فا ، اوازه ، اس ص مؤ ، وا ، ج : اوازې] (وـــ آوازه)

ــــ **ختل** :-(اص) خبر خورېدل ، افواه خورېدل ، ګنګوسے يا ګنېږې خورېدل۔

ــــ **خورول** :-(اص) خبره مشهورول ، څهٔ خبرې ته باد ورکول۔

ــــ **خورېدل** :-(اص) شهرت کېدل ، افواه خورېدل ، څهٔ خبرې ته باد ورکېدل

**اواګير** :-(اَ + وا + ګيْ + ر) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: اواګيره ، ج : اواګيرې ) ] لُغ : په هوا کښې ګرځېدونکے ۔ اص (۱) پورته ، اوچت (۲) تند ، تېز ، چُست (۳) خوشحاله (۴) کبرجن ، مغروره (۵) اوتر بوتر ، بې پروا (۲) په مخه ، نېغ لکه : "اواګير ئې واخست۔

ــــ **زړهٔ** :-(اص) (۱) خواهش لرونکے زړهٔ ، ناقلاره زړهٔ ، اوتر زړهٔ (۲) مئين زړهٔ ، بې قابو زړهٔ۔

ــــ **سړے**:-(اص) (۱) کچه سړے ، بې پروا سړے ، ناقلاره سړے ۔په يو ځاے نهٔ کښېناستونکے سړے ، اوتر بوتر کس ، بګتې ۔ (۲) بې اتباره سړے ، بې اعتماد ۔

ــــ **کول** :-(اص) (۱) بې صبره کول ، ناقلاره کول (۲) اوچتول ، اوچت ، غورځول (۳) لمسول ، څوک په شېطانۍ يو کار ته تيارول (۴) د نشې سرته ختل ، په نشه کښې په آسمانونو کښې ګرځېدل

ــــ **ګرځېدل** :-(اص) (۱) په تُندۍ او بېړه ګرځېدل ، پښه په مزکه نهٔ لګېدل ، په غر او سمه يو شان ګرځېدل ، (۲) بې مقصده او بې مطلبه ګرځېدل ، (۳) په کبر او لويۍ ګرځېدل ، (۴) په نشه کښې په اوا ګرځېدل۔

ــــ **وړل** :-(اص) سمدستي تښتول ، زر او په تندۍ وړل ، بې ډيله وړل ، ارلګ وړل ، په هوا وړل۔

**زړهٔ اواګير کېدل** :- (اص) (۱) زړهٔ پاڅېدل ، زړهٔ اوچتېدل ، زړهٔ چګېدل (۲) د زړهٔ اوا خوړل۔زړهٔ مېنېدل۔

**اواڼ** :-(اَ+وا + ڼ) [ پ (عا) ه : اعوان ، اس ، مذ ، وا ، ج : اواڼان ، (مؤ وا: اواڼه ، ج : اواڼې) ] وـــ آوان

**اوايل** :-(اَ + وا + ئِ + لْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا ، اول] شروع ، ابتداء ، آغاز ، د اول نه ، د ازل نه۔

**اُوب** :-(اَوْ + بْ) [ اف : پ ، (قاموس) ع ، حُب ، ص ، نو ] لُغ : مينه ، محبت ، اص : نيمګړے شوق ، د يو څيز دپاره عارضي مينه ، ناپائيداره او بې بنياده شوق۔

ــــ **ورتلل** :- ( اَف ) اص ۔ مينه پېدا کېدل،د څهٔ څيز يا کارسره عارضي مينه پېدا کېدل

**اَو باز** :- (اَوْ + با + زْ) [ پ (عا) فا ، اب باز ، اس ، فا ع ، مذ ، وا] لامبوزن آب باز، په اوبو کښې تارۍ وهونکے ۔ متل : " اوباز يم خو بې ګودره نهٔ ګډېږم "

**اوباش** :-(اَوْ + با + ش) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج اوباشان ، (مؤ ، وا ، : اوباشه ، ج : او باشې ] (۱) بد کار ، عياش ، اواره ، بد چلن ، بدکردار ، فضول خرچ ، لولنګر ، اټاؤو ۔(۲) بې سره ، کمينه ، غېر ذمه دار ۔

**اوباشي** :-(اَؤ + با + شي) [ فا ، ص ، مؤ ، وا ، ج : اوباشې ] بدکاري ، اواره ګردي ، عياشي ، بدچلني ، بدکرداري ، بازاري ،

**اوبال** :-(اَؤ + بال + لْ) [ اف ، پ (قاموس) ع ، وَبال ، اس ، مذ ،وا ، ج: اؤ بالُونه] (۱) ګناه ، جُرم ، قصور ، (۲) د اخرت عذاب۔

ــــ **ګټل** :-(اَف) اص ۔ (۱) ازار ګټل ، د چا د ازارولو په سبب ګناه کول ازار اخستل ، (۲) جرم کول ، قصور کول ، ګناه کول۔

ــــ **ورپه غاړه کېدل** :-(اَف) اص ۔ ګناهګارېدل ، مختورن کېدل ، ازار ګټل ، ازاري جوړېدل۔

**په اوبال کښې ورسره لوېدل** :-(اَف) اص ۔د چا سره په ګناه ازار يا بدکار کښې حصه اخستل ، په آزارۍ کار کښې شريکېدل ، يا اشرګندے جوړېدل۔

**اوبال ګر** :-(اَوبال + ګَ + رْ) [ پ (روسي قاموس) اس ، فا ، ع ، مذ وا ] (وـــ اوباش)

**اوبالي** :-(اَو + با + لي) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ،وا ] ازاري ، بدکار ، بد خويه ، بد چلن ، بد مرغه ، خلقو ته تکليف رسوونکے

**اُوبتل** :-(اُوْ + بْ + تَ + لْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: اُوبتلونه ، (مؤ ، وا ، : اُوبتله ، ج : اوبتلې ) ] د اوبو د تل د لاندې ډوب ماکو ، اُوب ډوب ، د اوبو دننه تلونکے کشتۍ ، سب مېرين

**اوبجن** :-(اُوْ + بْ + جَ + نْ) [ پ ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: اوبجنه ، ج: اوبجنې) ] اوبزن ، اوبلن ، پوست ، نرم ، خوړين ، اوبړن ، هغه څيز چې اوبهٔ ئې کړې وي

**اوبجه** :-(اُوْ + بَ + جَه) [ پ (ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج : اوبجې ] اوبزه ، بزه ، ببزه ، هغه ورکوټے چينجے چې وړينې او ريښمينې جامې خوري۔

**اوبچي** :-(اُو+بْ + چي) [پ (راورټي)ه : اوپچي، اس ، مذ ، وا ، ج: اوبچيان ] وسله دار ، په وسله پُر ، هغه څوک چې پُوره وسله ئې اچولې وي۔

**اوبدل** :-(او+ بْ + د+ لْ) [اف :پ (قاموس) مص، مت] اودل ، اودن وودل ، وبېدل ، وءول۔ما : واوبدهٔ ، حا : اوبي ، ا : اوبه اوبي ، امر: وابه (په دې مصدر کښې ماضي په "د" سره او نور فعلونه بغېر د "د" نه جوړ شوي دي)

**اوبدلے** :-(او + ب + د + لے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : ابدلي ] اودلے ، وودلے ، وبېدلے ، وودلے۔

**اوبدونکے** :-(او + ب + دُو + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اوبدونکي ] اودونکے ، وودونکے ، وبېدونکے ، وودونکے ، وووي۔

**اُوب ډُوب** :-(اُو + بْ + ډُوْ + ب) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] (و- اوبتل)

**اُوبړن** :-(اُو + ب + ړَ + نْ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا : اوبړنه ، ج : اوبړنې) ] وـــ اوبجن۔

**اوبړۍ** :-(اُو + بْ + ړۍ) [ پ ، اص ، مؤ ، وا] (۱) د چندخو ناليۍ ، د چندخو شيرک ، د جنګشو کالي ، د اوبو په سر يا ويخ کښې شينکے ، يو قسم شنه ګياه چې په اوبو کښې همېشه دپاره وي۔ (۲) ص : خوړين ، سخا ، اوبلن۔لکه : "په خبرو مې ورته سر اوبړۍ شو " (۳) سو : اوړد شهتوت۔

ــــ **نيول** :-(اَف) اص : اوبو شينکے نيول ، په اوبو باندې شين د ونبو په شان څيز جوړېدل ، اوبهٔ سخا کېدل۔

**اوبزه** :-(اُوْ + بَ + زَ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اوبزې ] وـ اوبجه

**اوبزن** :-(اُو + بْ + زَ + نْ) [ پ ، اس ، ص، مذ ، وا] و ـــ اوبجن

**اوب سپے** :-(اُو + بْ + س + پَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اوب سپي ] د اوبه سپي مخفف ، د اوبو سپے ، سنګلاؤ ، بګلاؤ ، سګِ آبي ، سينګلاؤ۔

**اوبنبته** :-( اُوْ + بَ + خْ + تَ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اوبنبتې ]
لمنځه ، یوه غرئیزه ونه ، د ارچې یو قسم ، دیار.

**اوبغاړے** :-( اُوْ + بْ + غا + ړے ) [ اف :پ (قاموس ) اس ، مذ ، وا ] یو لوے نقش ( کشیده ) دے چې په سر او تورو تارونو د څُغې په څنډو ګنډلے شي.په چغو یا ګلیمو ګنډلے شوے برګ تار.

**اوبلن** :-( اُوْ + بْ +لَ +نْ ) [پ، ص ، مذ ، وا ، ( مؤ ، وا ، اوبلنه ، ج: اوبلنې)]
(۱) هغه خوراک چې اوبهٔ د ضرورت نه پکښې زياتې وي (۲) هر يو اوبړن څيز.

**اُوبلن توب** :-( اُوبلن + توب ) [ اف : پ( قاموس ) ص،مذ] خوړين توب ، اوبلنتيا ، د څهٔ څيز زيات نرمېدل ، اُوبلن والے.

**اُوبلن تيا** :-(اُوبلن+تْ+يا ) [ اف،پ (قاموس) ص ، مؤ ] و ـ اُوبلن توب

**اُوبلن والے** :-(اُوبلن + وا + لے ) [ اف : پ (قاموس ) ص، مذ] و ـ اوبلن توب

**اُوبلنول** :-( اُو+ بْ + لَ + نَ + وَ + لْ ) [ پ (ظفر) مص ، مت ] نرمول ، خوړينول ، اوبهٔ اوبهٔ کول ، په څهٔ کښې ډېرې اوبهٔ اچول ، ما : اوبلن کهٔ ، حا : اوبلنوي ، ا : اوبلن به کي ، امر : اوبلن که ( د حال نه بغېر نور فعلونه د اُوبلن کول نه وتي دي )

**اُوبلنوُونکے** :-(اُو+ بْ + لَ + نَ + وُو+نْ +کَے ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اُوبلنوُونکي ، (مؤ ، وا: اُوبلنوونکې ) ] خوړينوُونکے ، نرموونکے.

**اُوبلنېدل** :-( اُوْ + بْ + لَ + نې + دَ + لْ ) [ پ ، مص ، لا] نرمېدل ، خوړينېدل ، اوبهٔ اوبهٔ کېدل ، ما: اُوبلن شهٔ ، حا: اوبلنېږي ، ا: اوبلن به شي.

**اُوبلنېدونکے** :-( اُوْ + بْ + لَ + نې + دُو + نْ + کَے ) [ اف : پ ( قاموس ) مف ، مذ ، وا ، ج : اوبلنېدونکي ، ( مؤ ، وا: اُوبلنېدونکې ] خوړېندونکے ، نرمېدونکے.

**اُوبلوښے** :-( اُو + بْ + لو + ښے يا شے ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج : اوبلوښي ] د اوبو لوښے.

**اُوبله** :-( اُو + بْ + لَه ) [ پ (ظفر) اس ، مؤ ، وا ، ج : اوبلې ] د سفر سامان،دسفرتوښه،څوړې ، زېرمه.(دا ټکے عام نهٔ استعمالېږي.

**اوبلۍ** :-(او + ب +لۍ ) [ اف : پ ، (قاموس) اس ، مؤ ، وا] (۱) کنډر کويۍ ، باناړار ، هغه کويۍ چې خولهٔ ئې وازه او ماته ګوډه وي. (۲) يو قسم بيماري.

**اُوبلېږي** :-(اُوب +لې+ګي يا ژي ) [ اف : پ (قاموس) ص،مذ] و ـ اوبلن

ـــــ **کول** :-(اف) اص.ډېر نرمول ، خوړينول.

ـــــ **کېدل** :-(اف) اص.زيات نرمېدل ، خوړينېدل.

**اُوبنه** :-( اُوْ + ب + نَ ) پرهوان ، پيروان ، د ښځې ملا ، منه ، هغه نرۍ پرده يا جالۍ چې د مور په نس (خېټه ) کښې بچے پکښې پروت وي.د بچې د پيدا کېدو نه پس دا پرده مور اچوي.که چېرې وائې نچوي.نو د مرګ خطره ئې وي.

**اُوبنې** :-(اُو بَ+نې ) [اف : پ(قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اوبنې] (و- اوبلوښې)

**اُوبنې** :-( اُو + بَ + نې ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مو ، وا] ( و ـ اوبنه )

**اُوبو تتۍ** :-( اُو + بو + تَ + تۍ ) چ اف: پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ] د اوبو يوه مرغۍ چې غوښه ئې ډېره خوړه وي.

**اُوبو ځاله** :-( اُو + بو + دْزا ) له ) [ اف : پ (قاموس ) اس ،مؤ ، وا ، ج : اوبو ځالې ] اسفنج.

**اُوبورکي** :-( اُوب + و + رْ + کې ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ ،وا ، ج: اوبورکي]
د څرمنې يوه خاصه ټوټه چې ماشکي ئې د مشک لاندې په خپل مټ اچوي چې په اوبو لوند نهٔ شي.

**اُوبوسه** :-( اُو + بَو + سه ) [ اف : پ (قاموس ) اس ص ، مؤ ، وا ، ج : اوبوسې ]
زيمناکه مزکه ، زياته نوجنه زمکه.

**اُوبوشي** :-(اُو+بو+شي ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ] يو قسم شنکۍ.

**اُوبول** :-(اُو + بَ +وَ + لْ ) [ پ ، مص مت ] خړوب کول ، اوبهٔ خور کول ، پنه کول ، پټي يا مال ته اوبهٔ ورکول ، ما : اوبهٔ که ، حا: اوبوي ، ا : اوبهٔ به کي ، امر : اوبهٔ که.

**اُوبونه** :-(اُو + بَ + وَ + نه ) [ پ ، حمص ] خړوب کونه ، اوبه ورکونه ، اوبهٔ خور کونه ، پنه کونه ، څاروو ته اوبهٔ ورکونه.

**اُوبومور** :-(اُوبو + مو + رْ ) [ پ (خل) اس ، مؤ ] د اوبو يو چينجے.

**اُوبوُونکے** :-(اُو+بو +وُو + نْ+ کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ،مذ ، وا ، ج : اُبوُونکي ، (مؤ ، وا: اُوبوونکې ) ] اوبهٔ ورکوونکے ، خړوب کوونکے ، پنه کوونکے ، اوبهٔ خور کوونکے.

**اُوبوبشے** :-( اُوب + وې + شے ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا ] مېراب ، پانسالي ، د اوبو څوکيدار چې د ناکو خيال ساتي چې د بو ناکې اوبهٔ په بله کښې لاړې نهٔ شي.

**اُوبه** :-(اُو + بَه ) [ اف :پ ، (قاموس) ص ، مؤ ] د اس د سُم ډډوالے.

**اُوبهٔ** :-( اُوْ + بهٔ ) [ پ ، اس ، ج ، مؤ ] (۱) ابپهٔ ، ابو ، هغه بهېدونکے څيز چې بې رنګه بې ذائقې او بې بويه وي.او د بنيادم د ژوند دپاره ضروري جُز دے.دوه حصې هائيډروجن او يوه حصه اکسيجن لري.(۲) اوبنکې.

ـــــ **اچول** :-(صو ) اص.(۱) د کوژدنې په وخت د وادهٔ په زلمي د جينکو اوبهٔ تويول ، دا يو رسم دے (۲) کله چې باران نهٔ کېږي نو هلکان په لاره تېرېدونکو خلکو ناڅاپي اوبهٔ تويوي.خيال دا وي چې خداوند پاک به د خپر باران وکړي .(۳) د امامانو په ورځ (د عاشورې په لسم ) په قبرونو اوبهٔ تويول.

ـــــ **اُوبهٔ کېدل** :-(اص ) څهٔ څيز ته پسخېدل يا ظهيرېدل.څهٔ څيز ته زړهٔ کېدل.

ـــــ **او دانه** :-( اص ) (۱) رزق ، نصيب ، روزي ،قسمت ، آب و دانه (۲) ژوند ، اوربشه.

ـــــ **پټول** :-لُغ : د اوبو غلا کول ، ( په زميندارۍ کښې ) اص : د زخم پړسېدل يا زولن کېدل ، د پرهر ګزيکېدل ، پرهرګزک کېدل.د پرهر ښېدل ، د زخم پړسوب کول.

ـــــ **په پيچومي ختل** :-( اص ) ناممکن کار کېدل ، ګران کار سرته سېدل ، نهٔکېدونکے کار کېدل ، ناشونے کار کول.

ـــــ **په پيچومي خېژول** :-( اص ) نهٔ کېدونکے کار کول ، څهٔ داسې بهانه نيول چې هغه د کېدو نهٔ وي.په ستغ اوبهٔ خېژول.

ـــــ **په ځړول** :-( اَف ) لُغ : په چا اوبهٔ تويول ، اص : د چا سپکول ، بې عزته کول ، د چا عزت اخستل ، شرمول.

ـــــ **په سترګو کښې درېدل** :-( اَف ) اص . (۱) سترګو کښې اوښکې راتلل،سترګې د اوښکو راډکېدل ، ژړغونے کېدل (۲) شرمنده کېدل.

ـــــ **په سترګو کښې راتلل** :-( اص ) ژړه غونکے کېدل ، په سترګو کښې اوښکې راتلل ، سترګې راډکېدل ، زړهٔ راډکېدل.

ـــــ **په غاړه کښې ښکارېدل** :-( مخ ) د ډېر ښکلي او ښائسته بنيادم په حقله وئيلے شي.زياته ښکلا ، حُسن او نزاکت.

ـــــ **په مرۍ کښې ښکارېدل** :-(اص) و ـــ اوبهٔ په غاړه کښې ښکارېدل

ـــــ **تر ورخ تېرېدل** :-لُغ : اوبهٔ په ورخ کښې بهېدل،اص : موقعه د لاس نه وتل ، څهٔ کار کښې ډېل راتلل ، څهٔ کار د لاس نه وتل ، توکلې لاړې بېرته په خولې نهٔ راځي.

ـــــ **تړل** :-(اص ) د زمکې خړوب کولو دپاره اوبو ته بند اچول ، په زمکه اوبهٔ را اړول.

ـــــ **تويول** :-( لُغ ) اوبهٔ تلول ، اوبهٔ اړول ، اص. (۱) مړي پسې خېرات کول

(۲) د خپل بدن جوهر بې ځایه خرځ کول.

ـــــ **تېرېدل** :-لُغ : د یو ځایه نه اوبهٔ کښته تلل ، اص : (۱) تسلي کېدل د پرېشانی او حېرانی د حالت نه بهر کېدل ، لاړه تېرېدل ، (۲) د ډوبېدو یا د لامبو په حالت کښې د حلق نه اوبهٔ لاندې تېرېدل.

ـــــ **خړول** :-(اص) چاته هسې بهانه جوړول ، د چا سره د جنګېدلو دپاره خامخا انې بانې لټول ، چاته نیت بدول ، بانې غوښتل.

ـــــ **درول** :-(اف) اص. لُغ : اوبهٔ اُودرول. اص : بې عزته کول ،لکه : "اوبهٔ دې راودرولې"

ـــــ **درېدل** :-(اف) اص : لُغ : اوبهٔ په ځایے اودرېدل ، اص : بې عزته کېدل. لکه : "سږ کال د فلانی اوبهٔ ودرېدې"

ـــــ **د سر نه اوړېدل** :-(اص) (۱) ډوبېدل ، غرقېدل (۲) وخت د لاس نه وتل ، په څهٔ کار کولو کښې تاخیر راتلل ، وخت تېرېدل ، (۳) زیات مجبورېدل

ـــــ **ډکول** :-(اص) (۱) اوبهٔ منګوچاټوته اچول (۲) د ګودر نه اوبهٔ راؤړل

ـــــ **ډم وروړل** :-(اف) اص : د یو کار نتیجه د توقع نه خلاف راوتل. د کار بده او بر خلاف نتیجه وتل او اریان دریان پاتې کېدل.

ـــــ **راماتېدل** :-(اص) د پوزې نه اوبهٔ بهېدل ، یخنۍ وهل ، پوزه بهېدل، پوزه څڅېدل.

ـــــ **سپرول** :-(اف) اص. لُغ : اوبهٔ سورول ، اُوبهٔ پاس خېژول ، اص: پټې ته اوبهٔ ورکول ، پټے پېه کول.

ـــــ **سرې کول** :-(اص) اوبهٔ ډېرې یشول ، اوبهٔ سختې ګرمول یا تودول اوبهٔ زیاتې خوټکول.

ـــــ **سمول** :-(اص) پټې ته اوبهٔ برابرول ، په پټې باندې اوبهٔ پرېښول.

ـــــ **شاربل** :-(اص) بې فائدې کار کول ، داسې کار ته لاس اچول چې بُود ئې نهٔ وي

ـــــ **ښې راتلل** :-(اص) د یو ځایے اوبهٔ په ځان ښې راتلل ، د یو ځایے د ښو اوبو له کبله صحت ښهٔ کېدل.

ـــــ **غړپ کول** :-(اص) (۱) اوبهٔ څښل (۲) اوبهٔ په یوه ساه څښل ، زر زر اوبهٔ څښل ، د اوبو غټ غټ ګوټونه کول ، په یوه لیندۍ اوبهٔ څښل.

ـــــ **غلبلول** :-(اص) عبث کار کول ، بې فائدې او بې بوده چارې ته لاس اچول، شګې چاڼوؤل ، اوچې اودرول ، د شګو پرې غښتل ، د شګو پراټې جوړول، د شګو کوکرې جوړول.

ـــــ **غوښتل** :-(اص) لُغ : د اُوبو خواهش ظاهرول ، اص : د اوبو ضرورت پېښېدل، تږے کېدل.

ـــــ **کرنګ کېدل** :-(اص) اوبهٔ کنګل کېدل ،اوبهٔ چک کېدل ،اوبهٔ مورې کېدل، اوبهٔ کنګر کېدل ، اوبهٔ یخ کېدل ، اوبهٔ کنګل کېدل

ـــــ **کول** :-(اص) (۱) د سترګو نه اوبهٔ بهېدل ، د سترګو د اوښکو نه ډکې ډکې کېدل ، د خوږ سترګو نه اوبهٔ بهېدل (۲) زمکه خړوبول یا پېه کول ، پټې اوبهٔ کول ، پټو ته اوبهٔ ورکول.

ـــــ **کېدل** :-(اص) لُغ : (۱) خړوب کېدل ، پېه کېدل ، سېرابېدل. (۲) اوبهٔ اوبهٔ کېدل ، اوبهٔ سره یو ځایے کېدل. اص (۱) یرې اخستل ،ډېر کمزورے کېدل (۲) ویلې کېدل.

ـــــ **لاندې کول** :-(اف) اص. دوکه ورکول ، چل ول کول ، پرېشانه کول ، لکه : "فلانی اوبهٔ رالاندې کړې ، دلته ئې راوستم"

ـــــ **نهٔ څښل** :-(اص) (۱) باور نهٔ کول ، اتبارنهٔ کول ، تسلي نهٔ کول. (۲) صرفه نهٔ کول.

ـــــ **نهٔ غوښتل** :-لُغ : د اوبو خواهش نهٔ ظاهرول ، اص : ناڅاپې مړ کېدل ، دنیا نه کوچ کول.

ـــــ **نهٔ ورکول** :-(اف) اص : د چا د زړهٔ خواهش نهٔ پوره کول ، د چا خبره نه منل. لکه : "فلانے چا ته اوبهٔ نهٔ ورکوي".

**پر اور ـــــ اچول** :-(اف) اص. لُغ : اور باندې اوبهٔ توېول ، اور مړول. اص : شر او فساد لرې کول ، جوړه راوستل ، شرفساد رفع کول جنګ سړول.

**په بُوسو کښې اوبهٔ بوتلل یا بوول** :-(اص) (۱) څهٔ کار په پټه کول ، د زړهٔ خبره پټه ساتل (۲) ټګي کول ، چاته کنده کنستل ، درغلي کول ، چل ول کول

**په کمزوري ځاے اوبهٔ اوړېدل** :-(اص : بې وسه او کمزورے کس ګناهګار ثابتول. په کمزوري کس تور تړل یا پورې کول.

**چاته اوبهٔ لاندې کول** :-(اص) چاته څهٔ چل جوړول ، چاته دوکه ورکول چا سره مکر فرېب کول ، چاته اوبهٔ لاتدې ایستل ، چاته زمکه ډډول.

**څاڅکے اوبهٔ** :-(اص) لږې اوبهٔ ، د اوبو څاڅکے یا قطره یو ټکے اوبهٔ

**د انارو اوبهٔ** :-(اص) د انارو عرق ، د انارو شربت ،

**د انګورو اوبهٔ** :-(اص) شراب ، مئے

**خولهٔ اوبهٔ کېدل** :-(اص) د څهٔ څیز خوړلو ته ډېره مینه کېدل ، څهٔ څیز ته خوا کېدل ، عام طور سره چې څوک تریو (ترش) څیز اووېني نو په خولهٔ کښې ئې اوبهٔ راشي.

**د حیات اوبهٔ** :-(ابِ حیات) اص : د ژوندوانهٔ اوبهٔ (ابِ حیات). وئیلے شي چې څوک دا اوبهٔ وڅښي نو تېول عمر به ژوندے وي.

**د ملا اوبهٔ** :-(اص) مني ، د سړي جوهر.

**یخې اوبهٔ پرې اچول** :-(اص) (۱) شرمنده کول، شرمول ، (۲) خاموشه یاغلے کول، د چا سړول.

**یخې اوبهٔ پرې اړول** :-(ګن) اص : (و ـــ یخې اوبهٔ پرې اچول)

**اُوبو نه ویستل** :-(اص) (۱) اوبو نه رایستل ، د اوبو نه بهر راوباسل (۲) د اوبو نه پورې ایستل یا پورې باسل (۳) وینځل ، پرې وینځل وِلل (۴) کنګالول ، لوښي جامې په اوبو پاکول.

**په اوبو کرښې کښل** :-(اف) لُغ : په اوبو باندې لیکې یا کرښې جوړول. اص : بې هوده او فضول کار کول. داسې کار کول چې بُود ئې نهٔ وي. لاحاصله کار کول

**په اوبو تازه کېدل** :-(اص) د اوبو په وجه د څهٔ ګل یا بوټي وده کېدل په اوبو ښېرازه کېدل.

**په اوبو نم کېدل** :-(اص) په اوبو وتره کېدل،په اوبو نوجن کېدل ، نمل

**تر اوبو ایستل** :-(اص) (۱) وینځل ، پرینځل (۲) مړي ته یا د څلوېښتو شپو بچې ته غسل ورکول.

**تر اوبو تږے پورې ایستل** :-(اف) اص. (۱) له اوبو نه تږے پورې کول. په اوبو تږے تېرول ، سیند ته تږے بوول او بېرته تږې راوستل. (۲) چاته دهوکه ورکول ، چا سره ټګي توري یا چل ول کول. د چا غلول.

**تر اوبو د مخه ګاولې کښل** :-(اف) اص. لُغ : د اوبو نه مخکښې پڼې ایستل ، اص : د وخت او موقعې نه مخکښې یو کار کول ، بې موقعې یو کار کول، د اجل نه آګاهو مړل ، لکه : "د اوبو د مخه ګاولې مه کاږه".

**تر اوبو نرې کول** :-(اف) اص. لُغ : د اوبو نه زیات نرمول. اص : شرمول ، سپکول، بې عزته کول.

**تر اوبو وتل** :-(اف) اص. غسل کول ، خصوصاً د ښځې هغه غسل چې د جامو راتلو په آخر کښې ئې کوي. د ښځې سر وینځل.

**د اوبو سقا** :-(اص) د اوبو ساقي توب ، تږیو ته د اوبو ورکولو کار.

**د اوبو غږ** :-لُغ : د اوبو آواز. اص : د اوبو چړ چړ یا شړ شړ آواز ، کله چې اوبهٔ بهېږي نو کوم آواز چې ئې په غوږو راځي هغې ته د اوبو غږ وائي.

**د اوبو وړل** :-لُغ : د اوبو یو ځایے نه بل ځایے ته په څهٔ لوښي کښې رسول. اص : د اوبو لاهو کول ، د څهٔ څیز په اوبو کښې بهېدل ، ډوبېدل. (۲) په څهٔ

مصيبت كښې گېرېدل۔

**اُوبۀ خور** :-( اُوبۀ + خْ + وَ + رْ ) [ پ ، اس ص ، مذ ، وا] (۱) هغه ځاے چې ښاروي پكښې اوبۀ څښي (۲) هغه ځاے چې خلق ترې نه اوبۀ وړي ، گودر۔

**اُوبۀ خوره** :-( اُوبۀ + خْ + وَ + رَ ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ، وا] هغه مزكه چې ډېرې اوبۀ خوري ۔ كومه زمكه چې ډېرې اوبۀ څكې يا راكاږي ۔ توسانده۔

**اُوبۀ شوي** :-( اُوبۀ + شَ + وي ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : اوبۀ شوي ] (۱) اوبۀ وركړې شوې۔سېراب شوي ، پئه شوي ، اوبۀ كړې۔لكه : " دا پټے اوبۀ شوے دے " (۲) اص۔ويلې شوي، كمزورې شوي۔

**اُوبۀ كړي** :-( اُوبۀ + كَ + ړې ) [اف ، پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : اوبۀ كړي] و ـــ اوبۀ شوي۔

**اُوبۀ لري** :-( اُوبۀ + لَ + ري ) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، ج : اوبۀ لري ] ابدار ، اوبۀ وركوونكے خادم ، هغه خادم چې د اوبو وركولو كار ورته سپارلے شوے وي۔

**اُوبۀ ور** :-( اُوبۀ + وَ + رْ ) [ پ (ظفر) اس ، ص ، مذ ، وا] لُغ : خړوب ، سېرابه ، پئه شوے ، ص : بامراد ، كامياب

**اُوبۀ وركې** :-( اُوبۀ + وَ + رْ + كے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اوبۀ وركي ] اوبۀ وركونكے۔

**اُوبۀ ورې** :-( اُوبۀ + وَ + رې ) [ پ (گن) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اوبۀ وري ] اوبۀ راوړونكے ، ماشكي ، اوبۀ وړې۔سقه ، بهشتي ، اُوبي

**اُوبۀ وړكې** :-( اُوبۀ + وَ + ړْ + كې ) [ اف: پ (قاموس) اس ، ص ، مذ، وا : ج ، اوبۀ وړكي ] هغه ټوكے ( كپړه ) چې په هغۀ كښې لوښے نغاړي

**اُوبۀ وړې** :-( اُوبۀ + وَ + ړې ) [ پ ( سو) اس ، مذ ، وا ، ج : اوبۀ وړي ] لُغ: اوبو لاهو كړے ، اص : و ـــ اوبۀ وړې۔

**اُوبي** :-( اُو+بيْ ) [ اف : پ (قاموس) اس،مذ ،وا ،ج: اوبيان ] و ـــ اوبۀ وړې

**اُوبېدل** :-( اُو + بې +دَ + لْ ) [ اف : پ (قاموس ) مص ، لا] خړوب كېدل پئه كېدل ، سېرابېدل ، په اوبو مړېدل ، اوبۀ راكښل۔

**اُوبېدنګ** :-( اُو+بې +دَ +نْ + گ ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] اوبېدنه، سېرابېدنه ، خړوب كېدنه ، پئه كېدنه۔

**اُوبېدنه** :-( اُوْ + بې + دَ + نَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــ اوبېدنګ

**اُوبېدونكے** :-( اُو + بې + دو + نْ + كے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مف ، مذ ، وا ، ج : اوبېدونكي ( مؤ ، وا : اوبېدونكې ) ] سېرابېدونكې پئه كېدونكې ، خړوبېدونكې

**اُوبېږ** :-( اُو + بې + گ يا ژْ ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ ] وارۀ زاګۀ بال بچ ، اهل و عيال ، د كور خلك۔

**اوپ** :-( او +پْ ) [ اف : پ ( قاموس ) ع : اُف ، كلمه افسوس ] اُف : د غم او افسوس په وخت كښې دا كلمه په خولۀ راځي۔د خوږ او درد په موقع هم د خولې نه دا كلمه وُزي۔

ـــــ **كښل** :-( اف ) اص۔نفرت او افسوس ظاهرول ، اوپ يا اُف كول۔

ـــــ **كول** :-( اف ) اص۔( و ـــ اوپ كښل )

**اوپره** :-( اُو + پْ + رَ ) [ پ ، ص ، ه : اوپري ] (۱) اف : هغه كس چې جائيداد نۀ لري۔(۲) پردے ، بهرنے ، پرديسي ، مسافر ، ناواقف ناجانه ، (۳) نرمه خته ، هغه خاوره چې منږك ئې د غار نه را اوباسي ، پوله پرته خته ۔ (۴) سرسري ، پاس پاس ۔

**اوپره پالے** :-( اوپره + پا + لے ) [ اف ، پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ،وا] پردي خلك پالونكے ، هغه كس چې ناپېژندګلو خلك پالي او ساتي

**اوپره توب** :-(اوپره+ تو + بْ ) [اف : پ ( قاموس )ص ، مذ ] (۱) بېګانګي ، پردي توب ، مسافري ، بېكسي ، بې وسي (۲) د خاورې نرم والے ، اوپره والے۔

**اوپره والے** :-(اوپره+وا+لے ) [ اف : پ ( قاموس) ص،مذ ] و ـ اوپره توب

**اُوت** :-( اُوْ + تْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] زمانه ، وخت ، دور

**اَوت** :- ( اَوْ + تْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، ( مؤ ، وا ، اوته ، ج : اوتې ) ] (۱) لږ شان اوچ،نوجن شان (۲) خواهش ، زړۀ غوارنه ارمان ( ظفر )

ـــــ **كېدل** :-( اف ) لږ شان اوچېدل ، نوجن كېدل۔

**اوتاد** :-( او + تا + دْ ) [ ع ، اس ، ص ، مذ ، ج ] لُغ : مېخونه ، اص : د اولياؤ يو خاص ټولے ، لكه : " په اوو كښې بيا څلور دي ، چې د دوي نامه اوتاد ده " ۔ ( اخوند قاسم )

**اُوتاك** :-( اُو + تا + ك ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج : اوتاكونه] هوتاك ، كور ، د اوسېدلو ځاے ، د استوګنې ځاے۔

**اوتائے** :-( اَوْ + تائے ) [ پ ( ب ، خ ) اس ، مذ ، وا ، ج : اوتي ] د كلو په مېنځ كښې د اوبو تالاب ۔ هغه تالاب چې د باراني اوبو د جمع كولو دپاره اوكنستے شي۔جيوړ ، ډنډ۔

**اَوتر** :-( اَوْ + تَ + رْ ) [ پ (عا) ع ، اَبتر ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا ، اوتره، ج : اوترې ) ] پرېشانه ، بد حاله ، لېونے ، سر وهلے بروهلے ، باتريه ، سرګردان، كاواك ، ګډ وډ ، د ځان نه بې خبر۔

ـــــ **بوتر** :-( اص ) لېونے ، پرېشانه ، د ځان نه بې خبر ، بد حاله ، ګډ وډ ، اوتر كوتر ، كا واك۔

ـــــ **كوتر** :-(سو ) ( و ـــ اوتر بوتر )

ـــــ **كول**:-( اص ) پرېشانه كول ، ګډ وډ كول ، لېونے كول ، بد حاله كول ، سرګردانه كول۔

ـــــ **كېدل** :-( اص ) پرېشانه كېدل ، ګډ وډ كېدل ، لېونے كېدل ، بدحاله كېدل ، سرګردانه كېدل۔

**اوترتوب** :-( اوتر + تو + بْ ) [ پ ، ص ] اوتروالے ، پرېشاني ، ګډوډتيا بدحالي ، لېونتوب ، كاواكتيا۔

**اوتر والے** :-( اوتر + وا + لے ) [ اف : پ (قاموس) ص ] ( و ـــ اوتر توب )

**اوترول** :-( اَو + تَ + رَ + وَ + لْ ) [ اف : پ ( قاموس ) مص مت ] حېرانول پرېشانه كول ، هك پك كول ، ځلبلاند كول ، ځلبلانول ، مذبذب كول ، تنګول ، وارخطا كول

**اوترونګ** :-( اَوتر + وَ + نْ + گ ) [ اف : پ (قاموس) ص ] و ـ اوترتوب۔

**اوترونه** :-( اَو + تَ + رَ + وَ + نه ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] پرېشانه ونه،حېرانونه،ځلبلاندونه،تنګونه ، وار خطا كونه ، مذبذب كونه

**اوتروونكے** :-( اَو + تَ + رَ + وُو + نْ +كَے ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، فا ع ، مذ ،وا ، ج : اوتروُونكي ] حېرانوونكے ، پرېشانوُونكے ، وار خطا كوونكے ، ځلبلاندوونكے ،مذبذب كوونكے ، ګډ وډ كوونكے

**اوترې** :-( اَو + تَ + رېْ ) [ اف : پ ( قاموس ) مص مت ] ( و ـ اوترتوب )

**اوترېدل** :-( اَو + تَ + رې + دَ + ل ) [ اف : پ (قاموس) مص لا] و ـ اوتر كېدل۔

**اوترېدنګ** :-( اَو + تَ + رې + دَ + نْ + گ ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] اوترېدنه ، پرېشانېدنه ، حېرانېدنه ، ځلبلانېدنه ، ګډوډ كېدنه۔

**اوترېدنه** :-( اَو+تَ+رې+دَ+نَه ) [ اف :پ (قاموس) حمص] و ـ اوترېدنګ۔

**اوترېدونكے** :-( اَو+ تَ + رې + دُوْ + نْ + كَے ) [ اف : پ (قاموس) اس مف ، مذ ، وا ، ج : اوترېدونكي ، ( مؤ، وا : اوترېدونكے ) ] حريانېدونكے ، پرېشانېدونكے ، ځلبلانېدونكے ، ګډ وډ كېدونكے۔

**اوترېدهٔ** :-(اَو + تَ + رې + دَهٔ) [پ ، حمص] و ـــ اوترېدنگ۔

**اوتکے** :-(اُو + تَ + کَے) [پ (ب ، خ) اس ، تص ، مذ ، وا] وتکے ، طاقچه ، ورکوټے طاق ، وړه شان سوړه ۔

**اوتګے** :-(اُو + تْ + گَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اوتګي] (۱) لوګي خانه ، چمنۍ ، د لوګي سوړه ، هغه سوړے چې لوګے پرې وزي۔د لوګي غورکے ، منګ ، مګ۔(۲) سُورے ، مورۍ ، روشندان۔

**اَوته** :-(اَو + ته) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] وتره مزکه ، هغه نمجنه مزکه چې د تومنې (تخم) کرلو دپاره تیاره شي۔

**اَوته** :-(اَو+ته) [پ ، فا : هفته ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اوتې] هفته ، جمعه

ـــــ **هېره کېدل** :-(اَف) اص ۔ لُغ : هفته هېرېدل ، اص : پرېشانېدل ځلبلانېدل، حریانېدل۔دا د زنانۀ مخصوصه ښېره ده۔لکه : ''اوته دې هېره شه''۔

**اُوټ** :-(اُوْ + ټْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] په سر اودرېدل ، پښې پورته نیول او په سر اودرېدل ، سر د لاندې پښې د باندې اودرېدل سر په کونه ادرېدل، سر ښکته کونه پورته۔

**اوټي** :-(اُوْ + ټِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] بادي اوبښ ، د سورلۍ اوبښ هغه اوبښ چې د سورلۍ دپاره استعمالېږي او په دؤ دؤ ځي مهارے۔

**اوټه** :-(اَو + ټَه) [پ،ص ،مؤ،وا] دروغ،بې بنیاده خبرې ، ګپ ، بکواس۔

**اَوج** :-(او + جْ) [ع ، ص ، مذ] اوچتوالے ، لوړوالے ، بلندي ، هسکتیا کمال ، آخري حد

**اُوجاړ** :-(اُوْ + جا + ړ) [پ ، ه : اوجړ ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: اُوجاړه ج : اوجاړې) ] هغه ځاے چې استوګنه په کښې نۀ کېږي۔ړنګ ، ویجاړ ، غېر آباد ، برباد ، ویران ، شاړ ، لُوګ ،

**اُوجاړ والے** :-(اُوجاړ + وا + لَے) [پ ، حمص] بربادي ، غېر ابادي ، ویراني ، ویجاړ والے ، ړنګوالے۔

**اُوجاړول** :-(اُ + جارَ + وَ + لْ) [پ ، مص ، مت] ویجاړول ، بربادول ، غېر آبادول، ویرانول ، په یو ځاے کښې استوګنه پرېښول ، شاړول ، ړنګول ، لُوګ کول۔ما : اوجاړ کۀ ، حا : اُوجاړوې ،ا: اوجاړ به کې ، امر : اوجاړکه۔ (د حال نه سېوا نور فعلونه د اوجاړ کول نه جوړ شوي دي)

**اُوجاړونګ** :-(اُو + جا + ړَ + وَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] ویجاړونه ، اوجاړونه ، ورانونه ، تباه کونه ، بربادونه ، شاړونه

**اُوجاړونه** :-(اُوْ + جا + ړَ + وَ + نَه) [پ ، حمص] و ـــ اوجاړونګ

**اُوجاړوُونکے** :-(اُوْ + جا + ړَ + وُو + ن + کَے) [پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا ، ج : اوجاړوونکي] شاړوونکے ، ویجاړوونکے ، ورانوونکے ، بربادوونکے ، تباه کوونکے ، ړنګوونکے۔

**اُوجاړې** :-(اُوْ+جا+ړېْ) [پ ،ص ، مؤ ، وا ، ج : اُوجاړې] و ـ اوجاړوالے

**اُوجاړه اوجاړې** :-(اُو + جا + ړه + اُو + جا+ ړې) [پ ص ، مؤ ، وا ، ج : اوجاړې اوجاړې] ورانه وراني ، ورانه ویجاړه ، ډېره شاړتیا ، بربادہ بربادي ، ویجاړه ویجاړې ، ړنګه ړنګه ، لُوګه لُوګائي

**اُوجاړېدل** :-(اُو + جا+ړې + دَ + ل) [پ ، مص لا] ویجاړېدل ، شاړېدل ورانېدل، شنډېدل ، بربادېدل ، غېر اباد کېدل ، ړنګېدل ، ما: اوجاړ شۀ ، حا : اوجاړېږي ، ا : اوجاړ به شي (د حال نه سېوا نور فعلونه د اوجاړ کېدل نه جوړ شوي دي)

**اُوجاړېدنګ** :-(اُو+ جا +ړې + دَ +نْ + ګ) [اف ، پ (قاموس) حمص] اوجاړېدنه، ورانېدنه ، شاړېدنه ، بربادېدنه ، د استوګنې جوګه نۀ پاتې کېدنه ، ړنګېدنه ، خرابېدنه ، ویرانه۔

**اُوجاړېدنه** :-(اُو + جا + ړې + دَ + نَه) [پ ، حمص] و ـ اوجاړېدنګ

**اُوجاړېدونکے** :-(اُوْ + جا + ړې + دُوْ + ن + کَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج اوجاړېدونکي ، (مؤ ، وا: اوجاړېدونکے) ] ویجاړېدونکے ، ړنګېدونکے ، بربادېدونکے ، د استوګنې نه وتونکے۔

**اُوجاړېدهٔ** :-(اُو + جا + ړې + دهٔ) [پ ، حمص] و ـــ اوجاړې

**اُوجره** :-(اُوْ + جْ + رَه) [پ ، ع ، حُجره ، خلوت خانه ، کوټه ، اس ، مؤ، وا : ج : اوجرې] حُجره ، چوک ، چونک ، د کلي یا د خپل هغه شریک ځاے چې هلته په اوزګار وخت کښې خلق راغونډېږي او مېلمانۀ هم په هغه ځاے کښې پاتې کوي۔

**اُوجړي** :-(اُوْ + ج + ړي) [اف :پ (قاموس) ه : اوجهړي ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوجړي] لړے ، لړے کُلمې ، لړي سوکړي۔

**اُوجغونه** :-(اُوْ + ج + غُو + نَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اوجغونې] اوژغونه ، د بزې وېښتۀ ، اوژغوني ،

**اُوجه** :-(اُوْ + جه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اوجې] (۱) اوږه ، وژه (۲) کُب ، کبب

**اُوچ** :-(اُو+ چ) [پ ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: اوچه ، ج : اوچې) ] و ـ اُچ (په دې لړ کښې نور ټول ټکي ''اُچ'' سره وګورئ)

**اُوچاړ** :-(اُوْ + چا + ړ) [پ ، (ظفر) اس ، مذ ، وا] خلته ، د بالښت یا د تولاټي استر ، غلاف ، ابره ، اوچاڼ۔

**اُوچاڼ** :-(اُوْ + چا + ڼ) [پ (ګن) اس ، مذ ، وا] (۱) و ـــ اوچاړ ، (۲) د قبر غلاف یا شال۔

**اُوچت** :-(اُوْ + چَ + تْ) [پ ، ص ، مذ ، وا (مؤ، وا: اوچته، ج: اوچتې)] و-اُچت (په دې لړ کښې نور ټکي ''اُچت'' سره وګورئ)

ـــــ **اُړول** :-(اص) غتې غتې خبرې کول ، چګې ویل ۔ ځان په څۀ کښې حسابول،ځان نوے بلل،دځانه زیاتې وئیل،لوئې لوئې خبرې کول

ـــــ **تلل** :-(اص) (۱) پاس تلل ، پاس په هوا تلل ، پورته ختل (۲) د څۀ څیز په ګرانه بیعه خرڅېدل، د څیزونو قیمت ختل (۳) د اندازې نه اوچتې خبرې کول،د خپل زوراو طاقت نه زیاتې خبرې کول ، کبر کول (۴) مرتبه زیاتېدل ، ترقي کول۔

ـــــ **اُوچت کېدل** :-(اص) (۱) زیات غصه کېدل ، جنګ ته تیارېدل ، په غصه کښې خبرې کول (۲) ځان لوے حسابول،کبر او لوئي کول۔

ـــــ **نیول** :-(اص) (۱) پاس په هوا کښې نیول ، د مزکې نه پاس نیول۔(۲) فوراً نیول ، سمدستي نیول ، (۳) زیاته بیعه کول (ګن) نرخ زیات ښائیل (۴) لوے مقصد نیول ، لوے مقصد په نظر کښې ساتل

**اُوچت توب** :-(اوچت + تو + بْ) [اف : پ (قاموس) ص] ونه ، قد ، اوچتوالے ، لوړتیا ، دنګوالے ، چګوالے۔

**اُوچتو پایو کښې** :-(اص) (۱) ډېر په مزو کښې ، عېش عشرت کښې۔(۲) کبر جن مغرور ، ځان ته غاوره ، خپله برخه آسمان نۀ لیدونکے

**اُوچتول** :-(اُو چَ + تَ +وَلْ) [پ ، مص مت] د زمکې نه پورته کول، پاس خېژول۔

ـــــ **راخلاصول** :-(اص) مزکې نه پورته کول او بیا په مزکه ترېل ، پاس اوچتول او بیا په مزکه رابغول ، د چا وهل ټوکل ، ګوشمالي کول۔

**اُوچتونګ** :-(اُو + چَ + تَ + وَ ++ ن+ ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] اوچتونه ، پاس خېژونه ، پورته کونه ، چګونه ، هسکونه۔

**اُوچتونه** :-(اُو + چَ + تَ + وَ + نَه) [پ ، حمص] و ـــ اوچتونګ

**اُوچتوُونکے** :-(اُو + چَ + تَ + وُو + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اُوچتوونکي ، (مؤ ، وا: اُوچتونکے) ] (۱) پورته کوونکے ، پاس خېژوونکے ، هسکوونکے ، چګوونکے ، (۲) د یو ځاے نه پاسوونکے یا چګوونکے ، (۳) د څۀ مقابلې دپاره پاسوُونکے یا پاره کوونکے

(۴) منصب زياتوونکے ، درجه زياتوونکے

**اُوچتېدل** :-(اُوْ + چَ + تې + دَ + لْ) [ پ ، مص لا] پورته کېدل ، پاڅېدل

**ـــــ راخلاصېدل** :-(اص) (۱) ډېر زيات غصه کېدل ، د غصې نه سُور شين يا سُور سپين کېدل ، د غصې نه تاؤ راتاؤ کېدل ـ قهر اخستل (۲) د څۀ څيز د حلالولو نه پس ټوپونه وهل ، پرکېدل يا پرړېدل

**اُوچتېدنګ** :-(اُو + چَ + تې + دَ + نْ + ګ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] (۱) پورته کېدنه ، ځګېدنه ، پاس ختنه ، هسکېدنه ، اوچتېدنه (۲) د يو ځاے نه پاڅېدنه (۳) په مقابله کښې راتلنه (۴) د منصب زياتېدنه ، د درجې سېوا کېدنه

**اُوچته مرګونړې** :-(اُوْ + چَ + ته +مَ +رْ + ګُو + نْ + ړې) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] يو قسم وابۀ چې د غابنونو د درد لرې کولو دپاره ډېره فائده رسوي

**اُوچتې خبرې** :-(اُو + چَ + تې + خَ + بَ + رې) [ پ ، اص ] (۱) په زور خبرې ، د زوره خبرې ، په اوچت اواز خبرې (۲) لوئې خبرې ، ډُوزې ، دُورې ، د کبر خبرې ـ

**اُوچتې اوچتې خبرې** :-(اص) (۱) د جنګ جګړې خبرې ، ډېر په غصه خبرې کول ، د ورانۍ خبرې کول ، (۲) لوئې لوئې خبرې ، د کبر او لويۍ خبرې ـ

**اُوچتېدنه** :-(اُو + چَ + تې + د + نَه) [ پ ، حمص ] و ـــ اوچتېدنګ

**اُوچتېـــدُونکے** :-(اُو+چَ +تـــې + دُو+ن + کَـــے) [پ،اس،ص، مـــذ ، وا: ج : اوچتېدُونکي ] (۱) پورته کېدونکے ، هسکېدونکے ، ځګېدونکے ، پـاس ختـونکے (۲) مقـابلې تـه ودرېـدونکے (۳) رتبـه زياتېـدونکے ، درجه سېوا کېدونکے

**اُوچتېدۀ** :-(اُو + چَ + تې + دۀ) [ پ ، حمص ] و ـــ اُوچتېدنه

**اُوچ کل** :-(اُوْ + چ + کُ + لْ) [ اف ، پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا (مو ، وا: اوچ کله ، ج : اُوچ کلې ) ] هغه ګډورے چې عمر ئې د شپږو مياشتو او کال په مېنځ کښې وي

**اُوچ کول** :-(اُوْ + چْ + کُو + ل) [ پ (ب ، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : اُوچ کولون ، (مؤ ، وا : اوچ کوله ، ج : اوچ کولې ] و ـ اُوچ کل ـ

**اُوچ کونے** :-(اُوْچ + کُو + نے) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اوچ کوني] کمزورے ، مانده ، ډنګر ، اينډکے ، هندوستانے ـ

**اُوچ کې** :-(اُوْچ + کې) [ پ (ظفر) اس ، ص ، مؤ ] د سيند يا دنهر په مېنځ کښې اوچت ځاے يا اوچته مزکه ، ډب ، ټاپو ، ټانګ

**اُوچن** :-(اُوْ + چَ + نْ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ] د پيورو څاروو يوه بيماري چې تې ئې په کښې اوچ شي او پې نۀ کوي ـ

**اُوچوکے** :-(اُوْ + چُو + کَے) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ] وچوکے ،وچه خاشګه ، خاشاک ، کنډُوکے ، ډاره (ګن)

**اُوچولے** :-(اُوْ + چْ + وَ + لَے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوچولې ] تندے ، ټنډه ، وچولے ، اُچلے ـ

**ـــــ ترينګل** :-(اص) ټنډه ګونجې يا ګونځې کول ، په تندې کښې دولس بجاوول ، تندے تريو کول ، تندے غُوټه کول ـ

**ـــــ ترينګلے** :-(اص) د تريو تندې خاوند ، مغرور ، کبرجن ، بُوټ تندے ، بوټ کوټے

**اُوچونے** :-(اُوْ + چُو + نے) [ اف : پ (قاموس) اس ،مذ ، وا ، ج : اوچوني ، (مؤ ، وا: اوچونې) ] د شپږو مياشتو اورے ، ګډورے

**اُوچه** :-(اَوْ + چَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اوچې ] دوه ښاخې ، دوه خېښې ، براڼګې ، ډيګور ، ډوانګې ـ

**اُوچې پوچې** :-(اُوْ + چِيْ + پُو + چِيْ)[ اف ، پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ ، ج ] فضول خبرې ، بې مطلبه خبرې ، پوچه وېنا ، اوچې پوچې ، عبث خبرې ، خوشې خبرې ـ

**اُوچے پوچے** :-(اُوْ + چے + پُوْ + چے) [ پ (ظفر) اس ، ص ، مؤ ، ج ]و ـــ اوچې پوچې ـ

**اُوچيچه** :-(اُوْ+چې+چه) [ پ (ګن) ص ] ضرور ،خامخا ،هرومرو ، ارومرو ـ

**اُوچيچې** :-(اُوْ + چې + چې) [ اف ، پ : (قاموس) مهمل کلمه ] (۱) د ورکوټو ماشومانو سره د لوبو په وخت کښې وئيلے شي ـ څۀ خاص معنې نۀ لري ـ (۲) څۀ څيز به دې اوخوري ـ

**اَوڅار** :-(اَو + تسا + ر) [ پ ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا: اوڅاره ، ج: اوڅارې] ښکاره ، څرګنده ، ظاهر ، جوت ، بلنګ

**اَوڅارتوب** :-(اَوڅار + تو + بْ) [ پ ، ص ، مذ ] څرګندوالے ، ښکاره توب ، ظاهروالے ، بلنګ والے ـ

**اَوڅارتيا** :-(اَوڅار + تْ + يا) [ پ ، ص ، مؤ ] و ـــ اوڅارتوب ـ

**اَوڅارشوے** :-(اَوڅار + شَ + وے) [ اف : پ ( قاموس ) مف ، مذ ، وا ، ج : اوڅارشوي ، (مؤ ، وا ، اوڅاره شوے ، ج : اوڅارې شوې ] ظاهر شوے ، ښکاره شوے ، څرګند شوے ، بلنګ شوے ، جوت شوے ـ

**اَوڅارکړے** :-(اَوڅار + کَ + ړے) [ اف : پ ( قاموس ) مف ، مذ ، وا ، ج : اوڅارکړي،مؤ ، وا: اوڅارکړې ] څرګند کړے ، ښکاره کړے

**اَوڅارول** :-(اَو+ څا+رَ +وَ + لْ) [اف :پ (قاموس) مص مت] څرګنده ول، ښکاره کول، جوتول ،ظاهرول، بلنګول- ما:اوڅارکۀ، حا: اوڅاروي، ا : اوڅاربه کې ،امر: اوڅارکه (د حال نه سېوا نور فعلونه د اوڅارکول نه جوړ شوي دي)

**اَوڅارونګ** :-(اَوڅار+وَ+نْ+ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص ] اوڅارونه،څرګندونه ، جوتونه ، ښکاره کونه ، ظاهرونه ، بلنګونه

**اَوڅارونه** :-(اَوڅار+وَ+نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـ اوڅارونګ

**اَوڅاروُونکے** :-(اَوڅار + وُوْ + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس،فا ع ، مذ،وا ،ج : اوڅاروُونکي ( مؤ، وا: اوڅاروُونکې ) ] څرګندوونکے ، ښکاره کوُونکے ، جوتوُونکے ، ظاهروُونکے ، بلنګوُونکے ـ

**اَوڅارېدل** :-(اَوڅا + رې + دَ + ل) [ اف: پ (قاموس) مص لا] ښکاره کېدل ، څرګندېدل ، جوتېدل ، ظاهرېدل ، بلنګېدل ـ ما: اوڅارشه حا : اوڅارېږي ، ا : اوڅار به شي (د حال نه سېوا نور فعلونه د اوڅارکېدل نه جوړ شوي دي)

**اَوڅارېدنګ** :-(اَوڅا+ رې + د+ نْ +ګْ) [ اف : پ ( قاموس) حمص ] اوڅارېدنه ، اوڅارېدۀ ، څرګندېدنه ، جوتېدنه ، ښکاره کېدنه ، بلنګېدنه ، ظاهرېدنه.

**اَوڅارېدنه** :-(اَوڅا+رې+دَ+نَه) [اف:پ(قاموس)حمص] و ـ اوڅارېدنګ ـ

**اَوڅکرې** :-(اَو + څُکْ + رَې) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ] اکرکره ، يو بوټے دے چې د غابنونو د دردِ دپاره د دوا کار کوي ـ

**اَوڅکک** :-(اَو+ څَ + کَ + کْ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ] پاپړه ، عُشبه ، شاه تره ، يو مشهور بوټے ـ

**اُوڅنډه** :-(اُو + نْسَ + نْ + ډ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، ( مؤ ، وا: اوڅنډه،ج : اوڅنډې) ] اووه اړخيز،هغه څيز چې اووۀ اړخونه لري ـ

**اوخ** :-(او + خ) [ پ ، کلمه ] (۱) وَخ ، د ارمان او افسوس کلمه،(۲) د خوشۍ په وخت هم وئيلے شي ـ

**اُوخ** :-(اُو + خْ) [ اف : پ ( قاموس ) ص ] يوه کلمه ده ې د ماشومانو د يرولو دپاره وئيلے شي-بَوْ ـ

**ـــــ پر کول** :-(اف) اص ـ د چا تر سول يا يرول ، چا ته بَوْ کول ـ

**اوخولے** :-(او + خُو + لَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اوخُولې]

غړے، غوړه ډوډۍ.

**اُوخې** :-(اُو + خ + ی) [ اف (قاموس) اس ، مؤ ، وا] (۱) بؤ ، هغه بلا چې ماشومان پرې يروي (۲) مه يرېږه.

**اوخے [اوښے ]** :-(اَو + خے) [ پ ، اس ، مذ، وا، ج : اوخي] (۱) د ښځې رور (۲) د خور خاوند.

**اَود** :-(اَوْ +دْ) [ اف : پ (قاموس) ع : حوض ، اس ، مذ ، وا ، ج :اودونه] تالاؤ ، تالاب ، اوتائي.

**اُود** :-(اُو + دْ) [ پ (عا) ع : عُود ، ه : اگر، اس ، مذ ، وا] عُود ، هُود ، اگر ، يو خوشبويه لرگے.

**اَودال** :-(او + دا + لْ) [ پ ، ع : ابدال ، اس ، مذ ، وا ، ج ] و ــ ابدال

**اَودالي** :-(اَو + دا + لـي) [ پ (عا) ص ،مذ ، وا ، ج : اودالیان ،(مؤ ، وا : اودالۍ ) ] و ــــ ابدالي.

**اَودالے** :-(اَوْ + دا + لَے)[ پ (عا) اس ص ، مذ ، وا ، ج : اودالیان ](و ــ ابدالے)

**اُودرول** :-(اُوْ + دْ + رَ + وَ + لْ) [ پ ، مص مت ] (۱) ولاړول ، درول ، وُدرول ، نېغول ، پورته کول (۲) تنبو ، شاميانه يا داسې بل څيز لگول (۳) تم کول ، منع کول ، بې حرکته کول ، په ځاے اودرول ، په ځاے ايسارول. ما: وادروۀ، حا: اُودري ، ا: وبه اودروي امر : اُودروه. (۴) د څوکۍ يا د څۀ پيغام دپاره د چا په يو ځاے کښې درول. (۵) د غوا مېښو پېۍ لوشول.

**اُودرونے** :-(اُو + دْ + رَ + وَ + نَ) [ پ ، حمص ] (۱) درونه ، ولاړونه ، وُدرونه ، پورته کونه ، (۲) تم کونه ، منع کونه ، بې حرکته کونه ، په ځاے ايسارونه (۳) لگونه ، ښخونه (۴) د څوکۍ يا د پيغام دپاره درونه (۵) د غوا مېښې اودرېدنه يعنې لويشنه.

**اُودروونکے** :-(اُو+دْ +رَ+ وُوْ+ نْ+ کَے) [پ،اس،فاع،مذ ، وا ، ج: اُودروونکي (مؤ، وا: اُودروونکې) ] (۱) دروُونکے ، ولاړوُونکے وُدروُونکے (۲) تم کوونکے، منع کوونکے، بې حرکته کوُونکے،په ځائې ايساروُونکے (۳) لگوُونکے ، ښخوُونکے (۴) د څوکۍ يا پيغام دپاره دروُونکے.

**اُودرېدل** :-(اُوْ + دْ + رې + دَ + لْ) [ پ ، مص لا] (۱) ولاړېدل ، درېدل ، وُدرېدل ، نېغېدل ، پورته کېدل (۲) تنبو ، شاميانې يا داسې د بل څيز لگېدل ، لکېدل يا ښخېدل. (۳) تم کېدل ، منع کېدل ، بې حرکته کېدل ، په ځاے ودرېدل ، په ځاے ايسارېدل. ما:وادرېدۀ حا : اُودرېږي ا : وبه اودرېږي ، امر : اُودرېږه. (۴) د څوکۍ يا پيغام دپاره درېدل (۵) د لوېشلو دپاره درېدل (۲) اوبۀ ډنډ کېدل

**اُودرېدلے** :-(اُوْ + دْ + رې + دَ + لے) [ پ ، اس ، مف، مذ ، وا ، ج : اُودرېدلي ( مؤ، وا: اودرېدلې) ] (۱) ولاړ شوے ، درېدلے ، وُدرېدلے ، نېغ شوے ، پورته شوے. (۲) تنبو ، شاميانه يا داسې بل څيز لگېدلے ، لگ شوے يا ښخ شوے. (۳) تم شوے ، منع شوے ، بې حرکته شوے ، په ځاے وُدرېدلے ، په ځاے ايسار شوے. (۴) د څوکۍ يا پيغام دپاره ودرېدلے.

**اُودرېدُونکے** :-(اُوْ + دْ + رې + دُو + نْ + کَے) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اُودرېدونکي ، (مؤ ، وا: اُودرېدونکې) ] (۱) ولاړېدونکے درېدونکے ، ودرېدونکے ، نېغېدونکے ، پورته کېدونکے (۲) لگېدونکے ، لکېدونکے ، ښخېدونکے (۳) تم کوونکے ، منع کوونکے ، بې حرکته کوونکے ، په ځاے وُدروونکے ، په ځاے ايساروونکے (۴) د څوکۍ يا د پيغام دپاره درونکے

**اُودرېدنه** :-(اُوْ + د+ رې + دَ + نه) [ پ ، حمص ] (۱) درېدنه ، ولاړېدنه وُدرېدنه نېغېدنه ، پورته کېدنه (۲) تم کېدنه ، منع کېدنه ، بې حرکته کېدنه ، په ځاے ايسارېدنه،په ځاے ودرېدنه (۳) لگېدنه ، ښخېدنه ، لکېدنه (۴) د څوکۍ يا پيغام دپاره درېدنه.

**اُودرېدۀ** :-(اُوْ + دَ + رې + دۀ) [ پ ، حمص ] (و ــ اودرېدنه)

**اَودس** :-( اَوْ + دَ + سْ) [ پ ، فا ، آبدست ، اس ، مذ ، ج: اودسونه يا اودسينه ] (و ــــ آبدس)

ــــ **اُوچول** :-(اص) باهر ته تلو نه پس ځان په لُوټه پاکول.

ــــ **اَړېدل يا اوړېدل** :-(اص) لُغ : اودس اوښتل ، اص : په خوب کښې اوبۀ فرض کېدل ، غسل فرض کېدل ، ابېۀ اوشتل ، اوبه په سر کېدل ، د شېطان غلطول ، په خوب کښې شېطان راتلل.

ــــ **اوښتل** :-(اص) اودس اړېدل.

ــــ **چار اندام** :-(اص) د مانځه دپاره مخ لاس ، پښې وينځل او د سر مسح کول اوچ اودس کول ، وضو کول ، وړوکے اودس.

ــــ **کښې گرځېدل** :- لغ : بې اودسۀ نۀ پاتې کېدل ، پاک گرځېدل ، اص: په احتياط اوسېدل ، پام کول ، د بدو چارو نه ځان ساتل ، د گناه نه مخ اړول.

ــــ **کول** :-(اص) (۱) اودس چار اندام کول ، وضو کول (۲) د چا بې عزتي کول بې عزتي رسول ، سپکول.

ــــ **کېدل** :-(اص) (۱) شرمېدل،سپکېدل (۲) زيات کرېدل ، (۳) زيان کېدل ، نقصان رسېدل.

ــــ **ماتول** :-(اص) (۱) باهر ته تلل ، حاجت دپاره کښېناستل ، ډکې متيازې کول (۲) سپکول ، بې عزته کول ، بې ابه کول.

ــــ **ماتېدل** :- لُغ : بې اودسه کېدل. اص (۱) باد تلل ، باد پرېښودل (۲) شرمنده کېدل ، سپکېدل.

**بې اَودس** :-(بې + اودسَ ) [ پ ، ص ] لُغ : چې اودس ئې نۀ وي. اص :شرمېدلے ،سپک.

ــــ **کېدل** :-(اص) (۱) و ـــ اودس ماتېدل (۲) د چانه څۀ غلطي يا قصور کېدل

**دمُلا بادر اَودس** :-(مح) ډېر احتياط ، کنايه ده. مُلا بادر په هر وخت د پيريانو د يري له کبله په اودس کښې گرځېدۀ. څوک چې په ويره او احتياط ژوند تېروي نو د هغۀ دپاره دا محاوره استعمالېږي. لکه: " فلانې لکه د مُلابادر په اودس کښې گرځي ".

**اَودس مات** :-(اَوْدس + ما + ت) [ پ (گن) اس ، مذ ، وا] اودس ماتے ، باهر تلل ډکې متيازې ، غټې بولې.

ــــ **ته تلل** :-( اص ) باهر ته تلل ، ډکې متيازې کول ، غټې بولې کول اودس ماتول.

**اَودس ماتے** :-(اَوْدس + ما + تے) [ پ، اس ، مذ) و ــــ اودس مات.

**داَودس ماتې ځاے** :-(اص) (۱) باهر ته د کښېناستو ځاے ، ټټۍ ، بيت الخلاء (۲) د بدن هغه حصه چې فضله پرې باهر ته وځي ، مقعد ، د بولو ځاے.

**اَودل** :-(اَوْ + دَ + لْ) [ پ ، اس ، مذ،وا، ج : اودلان (مؤ ، وا: اودله ، ج: اودلې) ] و ــــ ابدال. لکه : " چې په زمانه کښې د تېمور شا زوے د احمدشاه باني د بادشاهۍ د اودلوۀ " (گلشن روه)

**اَودل** :-(اَوْ+دَ+ لْ) [ پ مص مت ] وودل ، وبدل ، وېبدل ، اُوبدل، وودل

**اَودل شوے** :-(اَوْدل + شَ + وے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا، ج: اودلي شوي] اودلے شوے ، وودلے ، اوبدلے ، وېبدلے.

**اَودلي** :-(اَوْ+دَ+لَے) [ پ،اس ص،مذ،وا،ج : اودلي يا اودليان] و ـ ابدالے

**اَودلے** :-( اَوْ + دَ + لے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا، ج : اودلي ] و ــــ اودل شوے.

**اُودوم** :-(اُوْ + دُو + مْ) [ پ (ظفر) اس ، مذ ] (۱) د ټوټکي علاج ، هغه علاج چې په خلقو کښې د ټونې ټوټکې په دود مشهور وي. (۲) دم اُوده ، تورے تعويذ.

**اَودنګ** :-( اَوْ+ دَ + نْ + ګ ) [ اف : پ ( قاموس ) حمص ] اودنه ، وودنه ، اوبدنه ، وبیدنه

**اَودنه** :-(اَوْ+ دَ + نَه) [ پ ، حمص ] و ـــ اودنګ.

**اَودُونکے** :-(اَوْ+دُوْ+نْ +کَے ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اُودُونکي ] ټوکي جوړوونکے ، جولا ، ودُونکے ، اُوبدونکے ، وبیدونکے.

**اُودهٔ** :-( اُوْ + دَهٔ ) [ پ ، ص ، مذ ، وا ، ج ( مؤ ، وا : اُودهٔ ، ج : اُودې] (۱) خوبولے ، ویدهٔ ، خېبولے .(۲) اص : غافل و بې پروا ، بې غمه ، لکه : " هغه خو هسې اودهٔ دے "

**اُودهٔ بخت** :-( اُودهٔ + بَ + خْ + تْ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ] خوبولے قسمت ، بدنصیب ، بده نصیبه ، د تندي تیارهٔ ، بد قسمت ، سپېرهٔ بخت.

**اُودهٔ پروت** :-( اُودهٔ + پْ + رُو + تْ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اودهٔ پراتهٔ ، (مؤ ، وا : اوده پرته ، ج : اودې پرتې) ] (۱) خوبولے پروت ، ویدهٔ پروت (۲) بې خبره ، غافل

ـــــ **تلل** :-لُغ : خوبولے کېدل ، اودهٔ کېدل ، اص : (۱) په خوب کښې مړ کېدل (۲) ناخبره پاتې کېدل ، د څهٔ واقعې نه ځان نهٔ خبرول ، غافل پاتې کېدل

ـــــ **کول** :- لُغ : خوب وروستل،خوبولے کول.اص : مړول،ځان ترې خلاصول.

ـــــ **کېدل** :- لُغ : خوبولې کېدل ، سترګې پټېدل .اص : (۱) مړ کېدل ، مړېدل (۲) د بدن د څهٔ حصې د یو ساعت دپاره بې حسه کېدل.

**اُوده** :-( اُو + دَ ) [ پ ، ه ، هوده ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اُودې ] اجازه ، دم د مار لړم د چیچلو او هر قسم درد دپاره اجازه.

ـــــ **اخستل** :-(اص) اجازه اخستل ، د دم درود اجازت موندل .

ـــــ **ورکول** :-(اص) ددم درود اجازه ورکول.

**په اُوده کول** :-(اف) اص.د دم د لاتدې راوستل.

**اُودې لاندې راوستل** :-مح . (۱) دم د لاتدې راوستل ، ددم اثر لاتدې راوستل (۲) لاس لاتدې راوستل ، په خپله قبضه کښې راوستل ، خپل اثر لاتدې راوستل ، خپل تابع جوړول.

**اُوده لاندې کول** :-(مح) و ـــ اودې لاتدې راوستل.

**اُوده دار** :-( اُوده + دا + ر ) [ پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : ] پاړو ، جادوګر ، افسون ګر ، دم ګر ، د اودې خاوند .

**اُوده ګر** :-(اُوده+ګَ+رْ) [ مؤ،وا : اوده ګره ، ج : اوده ګرې] و ـ اُوده دار

**اُودي** :-(اُو + دي) [ پ ، ص ] یو رنګ ، شین بخن رنګ

**اوډر** :-(او + ډَ + رْ) پ (ګن) اس ، مذ ] پناه ، پټ

**اوډر نیول** :-(او + ډَ + رْ + نِيْ + وَ+لْ) [پ (ګن) اص ] پټېو خبرو ته غوږ نیول ، په پټه پټه د چا خبرې اورېدل ، اسګېرل.

**اوډل** :-(او + ډَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] ترتیب ورکول ، سمول ، سنبالول ، درستـول ، برابرول ، ما : واؤډهٔ ، حا : اوډي ، ا : وبه اوډي ، امر : واوډه

ـــــ **شوے** :-(اف) اص . برابر شوے ، سم شوے ، سنبال شوے ، ترتیب ورکړے شوے ، درست شوے.

ـــــ **کېدل** :-(اف) اص : ترتیب ورکېدل ، سمېدل ، سنبالېدل ، درستېدل ، برابرېدل

**اوډلے** :-(او + ډَ + لے) [ اف ، پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : اوډلي ، (مؤ ،وا: اوډلې) ] ترتیب ورکړے شوے ، برابر کړے شوے .سم کړے شوے ، سنبال کړے شوے ، په خپل خپل ځاے شوے.

**اوډنګ** :-(او + ډَ + نْ + ګ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] اوډنه ، ترتیب ورکونه ، برابرونه ، سمونه ، سنبالونه.

**اوډونکے** :-(او + ډُوْ + نْ + کَے ) [ اف ، پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اوډونکي ، ( مؤ ، وا : اوډونکې ) ] ترتیب ورکوونکے ، برابروونکے ، سموونکے ، سنبالوونکے ، درستوونکے.

**اوډنه** :-(او + ډَ + نَه) [اف : پ ، (قاموس) حمص ] و ـ اوډنګ

**اوړني** :-(او + ړ + نَي ) [ اف ، پ (قاموس) ه ، اوړهني ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اوړني ] لوپټه ، زنانه څادر ، د ښځو پټکے ، پړونے.

**اور** :-(او + رْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اورونه ، اورینه ] (۱) هور ، اتش ، وور ، پور ، اېر (۲) غصه ، قهر ، غضب ، کاوړ (۳) ګرمي ، تاؤ (۴) د مینې تاؤ ، د عشق سوے (۵) تېز ، تُند ، سخت

ـــــ **اچول** :-لُغ. اور لګول. اص : جګړه پېدا کول ، د دوو تنو په مېنځ کښې دښمني جوړول ، دوه په جنګ وروستل.

ـــــ **اخستل** :- لُغ : اور بلېدل یا لګېدل . اص : (۱) بیړه کول ، تادي کول (۲) غصه کېدل ، قهرېدل.

ـــــ **اوبهٔ** :-(اص) نقصان رسوونکے څیز ، هغه څیز چې تکلیف ترې رسېږي. اور سوځول کوي او اوبهٔ ډوبول.

ـــــ **اوبهٔ یو ځاے کول** :- لُغ : اور اوبهٔ سره ګډول.اص : د ناشوني کار کوښښ کول ، دوه دښمنان یا مخالف سره یو ځاے کول.

ـــــ **په سر بلېدل** :-(اف) اص.ډېر اوچت بلېدل ، دنګ اور بلېدل

ـــــ **پرې بلول** :- لُغ.په څهٔ څیز اور لګول.اص (۱) په مینه کښې د چا زړهٔ سول ، د ښائسته کبله زړهٔ ته تاؤ رسول.(۲) په بده او سپکه خبره د بل زړهٔ دړدول.

ـــــ **پر سړول** :- لُغ. اور پرې مړول. اص (۱) خواه پرې سړول ، زړهٔ پرې یخول ، مینه پرې ماتول (۲) غم پرې غلطول.

ـــــ **پرې مړ کېدل** :- لُغ. اور پرې سړېدل. اص (۱) د څهٔ کار نه بې غمه کېدل ، یو ذمه واري د سر نه لرې کېدل.(۲) تنګ لاسے او بې رحمه کېدل.

ـــــ **پُنبه سره یو ځاے کېدل** :-(اص) دوه بې جوړه څیزونه یو ځاے کېدل ، دښمنان یو ځاے کېدل ، دوه مخالف سره یو ځاے کېدل.

ـــــ **پورې کول** :- لُغ. اور لګول ، اور ورته کول اص (۱) څهٔ کار ته شا کول ، څهٔ کار پرېښول (۲) د چا وېزاره کېدل ، کرکه پېدا کېدل ، نفرت کول ، ځان بې غرضه کول (۳) یو اړخ ته کېدل ، د لاتجې نه څنګ کول (۴) د ښېرې په ډول هم استعمالېږي (۵) بې حسابه مال خرڅ کول ، فضول خرچي کول ، مال ته تیلے ورته کول (۶) د چا غصه کول ، زیات قهرول.

ـــــ **پورې کېدل** :-لُغ . اورلګېدل،اور ورته کېدل اص : (۱) په مینه کښې سول،په چاد عشق اورلګېدل (۲) ډېر غصه کېدل،زیات په قهر کېدل.

ـــــ **پُو کول** :- لُغ . اور ته پوکے ورکول ، اور تېزه ول ، اص : څوک په غُصه کول، څهٔ معامله ګرمول ، د چاپه مېنځ کښې دښمني زیاتول

ـــــ **په خولهٔ کښې وړل** :-(اص) (۱) ډېره تُندي کول ، تادي کول ، بیړه کول (۲) زیات تکړه کېدل ، په یو فن کښې زیات مهارت موندل ، ښه تقریر کول.

ـــــ **تازه کول** :- لُغ. اور تېزول. اص : (۱) یو معاملې له باد ورکول ، دښمني زیاتول ، لمسون کول ، شېطاني کول (۲) د زړې مینې وریادول ، دزوړ اشنا غم تازه کول ، تېرې هېرې خبرې یادول.

ـــــ **ته اچول** :- لُغ. اور ته غورځول. اص : په تکلیف کښې اچول.

ـــــ **ته پرېوتل** :- لُغ. اور ته اَچېدل ، اور ته غورځېدل. اص : په تکلیف کښې ګېرېدل.

ـــــ **ته پُوکي ورکول** :- لُغ. اُور تېزول ، اور ته حرکت ورکول ، اص. چاته غصه ورکول یا وروستل ، شېطاني کول ، د دوو په مېنځ کښې شر فساد جوړول.

ـــــ **ته ځان اچول** :-(اص) و ـــ اور ته دنګل.

ـــــ **ته دانګل** :- لُغ. اور کښې ځان اچول ، اور ته ځان اچول ، اور ته ټوپ وهل. اص : خوامخوا ځان په څهٔ لاتجه کښې اخته کول. په څهٔ فساد ځان اړول ،

دښمني په بیعه اخستل ، په دښمنۍ پسې چټې وهل ، په کړاؤ کښې ځان ګېرول ، ځان په تکلیف کښې اچول۔

ـــــ **ته غورځېدل یا لوېدل** :- لُغ۔ په اور کښې پرېوتل یا نسکورېدل۔اص (۱) په کړاؤ او مصیبت کښې ګېرېدل ، په دښمنۍ اخته کېدل (۲) سخته پېښېدل (۳) د چا په مینه کښې ګېرېدل (۴) ډېره جلتي یا تُندي کول ، بې صبري کول۔

ـــــ **ته نیول** :- لُغ۔ په اور سوځول ،په اور نیول۔اص : سختي او تنګسې ته نیول ، تکلیف ورکول ، دردول ، په غم اخته کول ، په بلا اخته کول ،

ـــــ **د سري** :-( اص ) (۱) هغه اور چې لمبې نۀ کوي خو دننه بلېږي۔پټ اور (۲) پټ درد ،هغه کړون چې دردول خو کوي ولې په نظر نۀ راځي۔

ـــــ **د نمرود** :-( اص ) هغه اور چې نمرود د ابراهیم علیه السلام د سوځولو دپاره بل کړے وو۔

ـــــ **راوړل** :-(اص) اور پېدا کول۔

ـــــ **سړېدل** :- لُغ۔اور مړ کېدل ، اور یخېدل۔اص (۱) فتنه ختم کېدل، لانجه فېصله کېدل ، زړۀ بداوے لرې کېدل ، (۲) وصال موندل، د معشوقې سره ملاقات کېدل (۳) تسلي کېدل ، ارمان پوره کېدل

ـــــ **سکور** :-( اص ) (۱) بې خونده خبره ، بې مزې خبره (۲) سوځېدلے ، وریت ، لړزېدلے۔

ـــــ **سکور کول** :-( اص ) (۱) بې خونده کول ، خاورې ایرې کول ، د استعمال نه ویستل (۲) د څۀ خبرې په خوند نۀ پوهه کول بې مزې کول۔(۳) سوځول ، وریتول ، لړزول۔

ـــــ **سکور کېدل** :-( اص ) (۱) بې خونده کېدل ، خاورې ایرې کېدل ، د استعمال نه پاتې کېدل (۲) د څۀ خبرې په خوند نۀ پوهېدل ، بې مزې کېدل۔(۳) سوځېدل ، وریتېدل ، لړزېدل۔

ـــــ **سمول** :-لُغ ۔ اور برابرول، اور مړ کېدو ته نۀ پرېښول ۔ اص : تکلیف ورکول ۔ زیات کړول ، وهل ډبول او مړول۔

ـــــ **غربدل** :-(اص) د اور اواز کول ، د اوپه چګو چګو لمبو بلېدل

ـــــ **ګرل** :-( اص ) اور لګول ، فساد پېدا کول ، شېطاني کول ، دوه په جنګ سره وروستل۔

ـــــ **کول** :-( اص ) (۱) اور اخستل ، اور لګېدل (۲) څۀ څیز په چا بې مزې کول۔

ـــــ **کېدل** :-( اص ) (۱) اور تازه کول ، اور کښې لرګي وهل ، اور پلتېل (۲) غصه ورکول (۳) فساد تازه کول ، فېصله شوې لانجه بیا راپورته کول۔ (۴) څۀ څیز په چا بې مزې کېدل۔

ـــــ **ګډول** :-(اف) لُغ : اور یو ځاے کول ، اص : جنګ جګړه جوړول فساد جوړول۔

ـــــ **ګډېدل** :-( اف ) اص۔جنګ جګړه او شر فساد جوړېدل۔

ـــــ **ګډې کېدل** :-( اف ) اص ۔شېطان جوړېدل ، د جنګ جګړې او شر فساد جوړولو عادتي کېدل۔

ـــــ **لټول** :-( اف ) اص۔ (۱) شور فساد جوړول (۲) مړ اور بیا تازه کول فېصله شوې جګړه د نوې سره تازه کول۔

ـــــ **لګول** :-لُغ۔اور بلول۔اص : (۱) فساد پېدا کول ، جګړه جوړول ، فتنه جوړول ، لمسون او شېطاني جوړول۔(۲) د بنائست له کبله د خلقو زړونه سول۔

ـــــ **لګېدل** :- لُغ ۔ اور بلېدل ، په څۀ څیز اورپورې کېدل،اص : کړېدل ، عذابېدل ، تنګېدل ، غصه کېدل ، قهر ورتلل۔

ـــــ **له خپله سره وژل** :-( اف ) اص۔خپل غم په خپله شړل ، ځاني کار په خپله کول ، خپلې لانجې او مشکلات په خپله حل کول۔

ـــــ **مړ کول** :- لُغ۔اور سړول۔اص : فساد لرې کول ، لانجه ختمول ، جنګ جګړه فېصله کول۔

ـــــ **ور اچول** :-( اف ) لُغ۔څۀ څیز ته اور ورلګول ، په څۀ څیز اور لګول۔اص : داسې وخت کښې وئیلے شي چې یو سړے څۀ څیز نۀ غواړي او نور ئې مجبوره کوي۔نو داسې وائي چې "اور وراچوم نۀ ئې کوم"۔

ـــــ **ورته کول** :- لُغ ۔اور پرې لګول۔اص : (۱) فضول خرچي کول ، بې ځایه دولت لګول (۲) په خبره زړۀ نۀ خوږول ، غم شاته کول۔ (۳) د څۀ خبرې نه ځان بې غرضه کول (۴) د چا په مېنځ کښې شېطاني کول ، لمسون کول۔

ـــــ **ورته کېدل** :- لُغ ۔اور پرې لګېدل ۔اص : (۱) بې ځایه دولت لګېدل ، فضول خرچې کېدل ، (۲) په خبره زړۀ نۀ خوږېدل (۳) د څۀ خبرې نه بې غرضه کېدل (۴) د دوؤ په مېنځ کښې شېطاني یا لمسون کېدل۔

پر ـــــ **کړول** :-( اف ) اص ۔ (۱) اور ته په یو بل مخ اړول را اړول (۲) ډېر عذابول ، زیات کړول ، .زیات تکلیف ورکول۔

پر ـــــ **کړېدل** :-(اف) اص ۔ډېر عذابېدل، زیات کړېدل ، زیات تکلیف رسېدل

په ـــــ :-(اص) د اور په ذریعه ، د اور په مدد ، په اور باندې

په ـــــ **اوبۀ اچول** :-لُغ۔په اور اوبۀ تلول ، اور مړ کول یا مړول۔
اص : (۱) غصه سړول (۲) لانجه ، شر یا فساد ختمول۔

په ـــــ **بار کول** :-( اص ) په اور انبارول ، په اور د لرګو ډېرے جوړول په اور لرګي کوټه کول۔

په ـــــ **بار کېدل** :- لُغ۔په اور سوځېدل۔اص : په اور پخېدل ، د پخېدلو دپاره په اور کښې کېښېښودل کېدل۔

په ـــــ **اور جوشول**:-(اص) په اورباندې جوش ورکول ، په اور خوټکول۔

په ـــــ **ستي کول**:-(اص) په اور سوځول،په اورسول،په اورلوخه پټه کول

په ـــــ **ستي کېدل** :-(اص) په اور سوځېدل ، په اور لوخه پټه کېدل

په ـــــ **سول** :- لُغ ۔په اور سوځول۔اص (۱) زیات تنګول ، ډېر زورول، بې کچه کړول ، (۲) د معشوقې په هجر کړول

په ـــــ **کباب کول** :-(و ـــــ په اور ستي کول)

په ـــــ **کباب کېدل** :-(و ـــــ اور ستي کېدل)

په ـــــ **کښې اوردول** :-( اص ) (۱) په کړاؤ کښې اچول ، په تکلیف کښې ګېرول (۲) سخت انتظار کښې ساتل۔

په ـــــ **کښې اودرېدل** :-( اص ) (۱) په کړاؤ یا تکلیف کښې ګېرېدل ۔ (۲) سخت انتظار کښې اوسېدل۔

په ـــــ **کښې پروت** :-(اص) (۱) په سخت کړون کښې ګېر شوے ، په زیات تکلیف کښې (۲) په سخت انتظار کښې وخت تېروُونکے (۳) په زیاته ګرمۍ کښې ګېر۔

په ـــــ **کښې کښېنول** :-(اص) (۱) په اور کښې سوځل ، سول (۲) په اور ایښنل ، ګرمول ، پخول۔

په ـــــ **کښې سوځول** :-لُغ : په اور کښې سوځول یا سول۔اص (۱) ډېر زیات تکلیف ورکول (۲) په مینه کښې کړول یا ربړول۔(۳) په سخت تاؤ یا ګرمۍ سوځول۔

په ـــــ **کښې سوځېدل** :- لُغ : په اور کښې سوځېدل یا سول۔اص : په ډېر غم کښې خفه یا بې ارامه کېدل (۲) په مینه کښې لوخړه کېدل ، (۳) په سخت تاؤ یا ګرمۍ کښې سوځېدل۔

په ـــــ **کښې کښېناستل** :-(اص) (۱) سول کېدل ، بې قراره کېدل ، تړپېدل ، (۲) په ګرم ځاے کښې کښېناستل۔

په ـــــ **کښې کښېنول** :-(اص) (۱) اور ته اچول یا غورځول ، سوځول ، سول (۲) کړاؤ کښې غورځول ، مصیبت کښې ګېرول۔

**په ـــ كښي لو لپه كېدل** :-(اص) (۱) په اور كښي سوځېدل ، په اور كښي خمسوزه كېدل.(۲) په گرمۍ كښي سوځېدل.

**په ـــ كښي وريتول** :-(اص) (و ـــ په اور كښي سوځول)

**په ـــ كښي وريتېدل** :-(اص) (و ـــ په اور كښي سوځېدل)

**په ـــ نيول** :-(اص) (و ـــ په اور كښي سوځول)

**په ـــ ورگډول** :- لُغ ـ په اور ورننه ايستل ـ اص : په غم اخته كول په كړاؤ كښي گېرول.

**په ـــ يشول** :- لُغ : په اور جوش وركول ، په اور خوټول ، په اور خُټكول.اص : (۱) ډېر په تكليف كښي گېرول (۲) په سخته گرمۍ كښي په چا انتظار كول

**په ـــ يشېدل** :- لُغ ـ په اور خوټېدل يا خټكېدل ، په اور جوشېدل اص : (۱) ډېر په تكليف كښي گېرېدل (۲) په گرمۍ سوځېدل

**په څۀ څيز يا په چا ـــ پوري كول** :-(اص) د څۀ څيز يا د چا نه وېزارېدل ، كركه پيدا كېدل.

**په زړۀ ـــ بلول** :-لُغ ـ زړۀ سوځول ، اص (۱) څۀ څيز ته ډېر زړۀ كېدل د خواهش او جذبې پيدا كول ، څۀ ته نوليدل يا پسخېدل ـ (۲) ډېر غمجنول ، زيات خفه كول.

**په زړۀ ـــ بلېدل** :-(اص) (۱) په مينه كښي زړۀ سول ، د اشنا په فراق كښي كړېدل ـ(۲) زيات غصه كېدل ، په يوه خبره ډېر قهرېدل (۳) زيات تږے كېدل

**په زړۀ ـــ لگېدل** :-(اص) (و ـــ په زړۀ اور بلېدل)

**په سُور ـــ ورگډېدل** :- لُغ ـ په سُور انگار ورننه وتل ، اص : ډېر بې تابه كېدل ، په څۀ جگړه يا لانجه كښي شاملېدل.

**په غر ـــ بلول**:-(اص) يو دستور دے چې خلق د غرونو په څوكو اور بل كړي او دغه شان د اختر د مياشتې د ليدو خبر لرې لرې رسوي

**په هر څۀ ـــ لگول** :-(اص) (۱) هر څۀ تباه كول (۲) د هر څۀ نه زړۀ اوچتول.د هر څۀ نه دانگل.(۳) خپل پردي پرېښول ، د ننگ ناموس فكر نۀ كول.

**تود ـــ** :-گرم اور ، بل اور ، چاخ اور.تېز اور.

**د ـــ بڅرے** :- لُغ.د اور ذره ، د اور سپېڅے.اص : تېز طرار ، چالاک ، چابک ، تندخويه ، مرچكے ، لكه : "فلانے خو د اور بڅرے دے"

**د ـــ په بيعه** :-لُغ.د اور په نرخ.اص : ډېر گران ، گران بيعه.

**د ـــ په بيعه لگول** :-(اص) په گرانه بيعه خرڅول ، گران قيمت كول

**د ـــ تېغ** :-(اص) د اور شُغله ،د اور ژبه ،د اورهغه شُغله چې د تورې په شان لمبه كوي.

**د ـــ ژبې كول** :-(سو) اص.د اور شغلې كول ، زيات اور بلېدل.د اور اوږدې اوږدې شغلې اوچتېدل ، شغلې اوچتېدل ، شغلې چكېدل ، د اور لوئې لوئې لمبې كول.

**د ـــ لمبې** :-(اص) د اور شغلې.

**د ـــ نه ډک** :- لُغ.د اور نه پُور.د اور نه روغ ، اص (۱) تېز مزاجه ، غصه ناك ، سخت طبيعته (۲) كينه كش ، كينه ناك (۳) د سوز گداز نه ډک.

**د ـــ نه روغ** :-(اص) (و ـــ د اور نه ډک)

**د ـــ نه ويستل** :- لُغ.د اور نه وباسل.اص : د كړاؤ نه خلاصو ، د نُول زول او تكليف نه بچ كول.

**سُور ـــ** :- لُغ ـ بل اور.اص : زيات تكليف ، ډېر مصيبت،زياته سختي

**سُور ـــ په خولۀ كښي وړل** :- لُغ.بل اور ته په خولۀ كښي د يو ځاے نه بل ځاے ته وړل ـ اص : ډېر تكړه كېدل ، بې حده زيات تېزېدل

**سُور ـــ قبلول** :-(اص) زيات تكليف او كړان ته غاړه كښېښودل ، په خپله مرضۍ ځان په تكليف او عذاب كښي گېرول.

**سُور ـــ كښي لاس ورمنډل** :-(اص) (۱) هيڅ بې هېڅه ځان ته لانجه پيدا كول ، خوا مخواه ځان په اور گډول.(۲) ډېر بې تابه كېدل ـ

**سُوزان ـــ** :-(اس ص) سوځونكے اور ، سوځوونكے اور ، سخت اور

**مطلبي په خته ـــ لگوي** :-مح ـ مطلبي سړے دخپلې فائدې دپاره هر څۀ هر څۀ كولو ته تيار وي.

**نرے ـــ** :-(اص) هغه اور چې رو رو مزې سره بلېږي ـ

**اُوراتل** :-( اُو + رات + تَ + لْ ) [ پ ( وز) مص لا ] ورزېدل ، وراتل ، په هوا كښي تلل ، الوتل.

**اَوراد** :-(اَوْ+را +دْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ، وا ، ورد ] (۱) ورد وظيفه ، د قرآن شريف يا درود شريف وظيفه.(۲) د ورځې كار ، روزانه كار ، وريزونه چار (وز)

**اَوراۀ** :-(اَو + را + رۀ) [ پ (وز) اس ، مذ ، وا ، ج : اوراروند ، (مؤ ، وا: اورارۀ ، ج : اوراري) ] د ورور زوے ، ورارۀ.

**اوراق** :-(اَو + را + قْ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : ورق ] پاڼې ، ورقونه.

**اور اوركے** :-(اور + اُو +رَ+ كَے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اور اُوركي] اوربلک ، ټنډانه ، يو چينجے دے چې د شپې په هوا كښي الوزي او د اور بڅري په شان رڼا كوي ـ

**اُور بڅركے** :-(اور + ب + څَسَ + رْ + كَے ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: اور بڅركي ] لُغ : د اور ذره يا سپېڅكې يا بڅرے ، اص: اوركے مرچكے ، تېز طبيعته.تُند خويه.

**اُور بخوله** :-(اُو + رْ + بَ + خو + لَه ) [ پ (بنو) اس ، مؤ ، وا ، ج : اوربخولې ] پېنځه ، اوربلے ، وربخوله.

**اُور بسه** :-(اُوْ+رْ+بَ+سَ) [ پ (گن) اس،مؤ ، وا ، ج : اوربسې] اُوربشه.

**اُوربشكه** :-(اُوْ + رْ + بَ + شْ + كَه ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: اوربشكې ] د اوربشې په شان وابنۀ.

**اُور بشوبه** :-(اُو + رْ + بَ + شُو + بَه) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ] د اوربشو اوبۀ

**اُور بشه** :-(اُوْ + رْ + بَ + شَ) [پ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اُوربشې ] لُغ : وربشه ، اوربسه ، يوه غله ، اص : (۱) عُمر ، ژوند ، رزق ، (۲) ارزان ، كم قيمته (۳) سپک ، لږ وزن لرونكے ، هلک ، (۴) لږ مقداره ، كم

**ـــ خلاصېدل** :-(اص) روزي يا روق خلاصېدل ، عُمر ختمېدل ، مړكېدل.

**ـــ ډېرېدل** :-(اص) روزي يا رزق فراخېدل ، عُمر ډېرېدل.

**دژوند ـــ** :-(اص) د ژوند خوارۀ اوبۀ ، د ژوند پاتې ورځې.

**اُوربشے** :-( اُوْ + رْ + بَ + شې ) [ اف ، پ ، (قاموس) اس، مؤ ] و ـــ اوربشكه)

**اُوربشين** :-(اُوْ + رْ + بَ + شي + نْ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا : اُوربشينه ) ] چې اُوربشو سره تعلق لري ـ د اور بشو واله مؤ : د اوربشې ډوډۍ ، د اوربشو مزكه ، د اوربشو مانړه يا مزكه (وز)

**اُوربشينه ډوډۍ** :-(اُوربشينه + ډو + ډۍ) [ پ ، اس ، ص ، مؤ ] هغه ډوډۍ يا ډوډۍ چې د اوربشو نه پخه شوې وي.

**اوربل** :-(او+رْ+بَ+ لْ) [ پ (ظفر) اس،مذ ] د كور افراد ، خاندان ، كورنۍ.

**اُوربل** :-(اُو + رْ + بَ + لْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اُوربلونه ] د پېغلې جينۍ د ټنډې وېښتۀ.وَربل (سو) پيكے.

**ـــ اودل** :-(اص) د ټنډې وېښتۀ اودل ، پيكے جوړول.زلفې وودل

**ـــ خورول** :-( اص ) د ټنډې وېښتۀ پرانستل ، وربل خلاصول ، پيكے خلاصول

**ـــ غوړول** :-(اص) زلفې پرانستل ،

**د ـــ روپۍ** :-( اص ) هغه روپۍ چې د ښكلا او ډول دپاره ئې جينكۍ په اوربل كښي لگوي.

**اوربلك** :-(اور+بَ+ لَ+ كْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوربلكي ] و ـ اور اوركے

**اوربلکے** :-( اور + بَ + لَ + کَے ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج : اوربلکي] (و ـــ اور اورکے )

**اوربلوونے** :-( اور + بَ + لَ + وُو + نَے ) [ پ (سو) اس ، مذ ، وا] د شونټې ډيوټ، د ښبتر شونټې چې بله کړے شي نو په کوم لرګي چې کښېښولے شي هغې ته وائي۔ د بلې شونټې د ايښودو ځاے۔

**اوربلے** :-(او + رْ + بَ + لَے ) [ پ (ګن) اس ، مذ ، وا ، ج : اُوربلي ] و ـــ اُوربخوله

**اُوربوز** :-( اُوْ + رْ + بُو + ز ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوربوزونه ] ( ۱) د ځناور پوره خولۀ (۲) اص : د بنيادم ځېره ۔

**ـــــ اړول** :-(اص) مخ اړول ، بې رُخي کول ، نفرت يا کرکه کول۔

**ـــــ بُوټ** :-(اص) بُوټه ټنډه ، په ترخ تندے ، تريو تندے۔

**ـــــ بوټ نيول** :-(اص) بوټه ټنډه نيول ، تريو تندے نيول ، خفګان ظاهرول

**ـــــ په هوا نيول** :-(اف) لُغ : ځېره په هوا کښې نيول۔اص : تکبر کول،کبر کول

**ـــــ کږول** :-(اص) مرورېدل ، ناراضه کېدل ، د چا زړۀ بدول۔

**په ـــــ ګرځېدل [ګرځېدل]** :-(اف) اص ، ډېره کول ، خفه کېدل ۔

**دغرۀ ـــــ** :-(اف) اص۔د غرۀ څوکه۔

**اوربوز بوټے** :-(اوربوز + بُو + ټَے ) [ اف ، پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا] تريو تندے لرونکے ، ترش رويه ، پرېشانه ، رنجيده ، خفه۔

**ـــــ کښېنستل** :-(اف) اص۔تريو تندے کښېنسل ، خفه کښېنستل ،

**اُوربوئي** :-(اُو + رْ + بُو ئي) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] هغه کشتۍ چې د اور په انجن چلېږي۔

**اورپښت** :-( اور + پَ + خْ + تْ يا پَ + شْ + تْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا : ج اورپښتونه ] پروانه ، پتنګ

**اورپښتي** :-( اور + پَ + خْ + تَے يا پَ + شْ + تَے ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ وا ، ج : اورپښتي ] و ـــ اورپښت۔

**اورته** :-( اَو + رَ + ته ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اورتې ] عورته ، ښځه ، تېر ، اروته ، ارتينه۔

**ـــــ کول** :-( اص ) (۱) ښځه کول ، ښځه جوړول ، وادۀ ورسره کول ، په نکاح کول (۲) څوک د حکم لاندې کول،تابع کول (۳) ذليلول،شرمول سپکول۔

**ـــــ کېدل** :-(اص ) (۱) ښځه کېدل ، ښځه جوړېدل ، وادۀ کېدل ، په نکاح کېدل (۲) د چا د حکم لاندې کېدل ، تابع کېدل ، (۳) ذليلېدل ، شرمېدل ، سپکېدل۔

**اُورته** :-(اُوْ + رْ + تَه ) [ پ ، اس ، اش ] هُورته ، هلته ، اخوا ، هغلته هغه ځاے کښې ،اولته ، لرې ، اُورې ، اُورې ته ، ايرې ، ويرې ، اولته۔

**اورټک** :-( اور + ټَ + کْ ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] (۱) د چقماق کاڼے ، پنډ بکرۍ ، (۲) د ټوپک چقماق

**اُورچنے** :-(اُوْ+رْ+چَ+ نے ) [ پ (پ ، خ +وز + بنو) اس ] بهر ، ورچنې ،

**اورڅک** :-( اور + څَسَ + کْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] تريو شان وابښۀ چې کچه خوړلے کېږي۔

**اور خارے** :-( اور + خا + رَے ) [ پ (ظفر ) اس ، مذ ] ريخې ، د ګډو بزو يو مرض يا رنځ ريخارے۔

**اور ډکے** :-( اور + ډ + کَے ) [ اف ، پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: اور ډکي ] اور لرونے ، داور لړلو لرګے ، د اور کېږلو لرګے ، د اور لړلو سيخ۔

**اُور ړے** :-( اُوْ + ر + ړَے ) [ پ (صوابي ) اس ، صوت ] د ګيدړ اروړے اونګا يا انګولا۔ د ګيدړ آواز۔

**اور ژبے** :-( اور + ژَ + بے ) [ اف : پ ( قاموس) اس ، ص ، مذ،وا ، ج: اور ژبي ، (مؤ ،وا ، ج : اورژبې ) ] تېز زبانه ، چې ژبه ئې تېره وي۔فصيح ، اتش بيان ، خبر لوځے ، کړتو۔

**اوروۀ** :-( اور + ګۀ يا اور + ژۀ ) [ پ ، اس ، مذ ، ج ] واروۀ ، ورېژه ، ورژۀ ، کنګل۔

**اور شو** :-( اور + شو ) ( اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] (۱) ورشو ، چراګاه ، د مال څرولو ځاے (۲) مېره ، دشت ، ارته ، پلنه او فراخه زمکه (۳) بندوبست ، تنظيم۔

**ـــــ ځيني ورکېدل** :-( اف ) اص۔بې بندوبسته کېدل ، لاړ ګودر خطا کېدل ، بې بنده بې پېوونده کېدل۔

**اورشے** :-( اُوْ + رْ + شَے ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ] يو بد بويه بوټے چې پلنې پاڼې او زير ګل لري۔

**اورښت** :-( او + رَ + خْ + تْ يا او + رَ + شْ + تْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اورښتونه ] باران ، د خېر رحمت۔

**اورغالے** :-( اور + غا + لَے ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا، ج : اورغالي ] انغرے ، د اور بلولو ځاے ، انګيټۍ۔

**اورغو** :-( اور+غو ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ، وا، ج : اورغووي] ورغو،وراغه،وروغه،مېره،بېديا ،ډاګ،صحرا ، دشت ، بيابان۔

**اورغوے** :-( اُوْر + غ + وے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، ج : اورغوي] ورغوے ، ورغوه ، د لاس تلے ، لکه : " درم شرعي مقدار همبره حسابېږي لکه اور غوي همبره قدر چې اوبۀ پکښې اودرېږي۔

**اورغوي سُولول** :-( اف ) لُغ : تلي مښل ، اص : افسوس کول ، منګولې مروړل ۔

**اورغوي کتل** :-(اف) اص (۱) د لاس تلي کتل (۲) د قسمت کرښې کتل ، فال کتل

**اورکے** :-( اُو +رَ + کَے ) [ اف : پ ( قاموس) اس ، مذ ،وا، ج: اُورکي] (و ـــ اور اورکے )

**اورکے** :-( او + رْ + کے ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ] يو قسم شنه چې کچه خوړلے کېږي۔

**اُورکے** :-( اُوْ + رْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] تُند او تېز مزاجه سړے ، سخت طبيعته ، تريخ۔

**اورګاډے** :-( اُور + ګا + ډَے ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا، ج : اورګاډي ] رېل ګاډے ، رېل۔

**اورګډے** :-( اور + ګَ + ډے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: اورګډي ] شېطان سړے ، ورانکارے ، اورګډوونکے ، فتنه ګر۔

**اورګنې** :-( اور + ګَ + نِېْ ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ : وا، ج : اورګنې] (۱) د زړو چيرړو ، رنجو يا زرُوکونه جوړ شوے تنبو يا کېږدۍ (۲) د سپکوالي کلمه ، د رنجو پلان د سمان۔

**اورلرګے** :-( اور + لَ + رْ + ګَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، ج : اور لرګي ] د ګوګړ لرګے ، د اور لګيت تيلے۔

**اورلړونے** :-( اور + ل + ړُوْ + نَے ) [ اف : پ ( قاموس) اس ، مذ ، وا، ج: اور لړوني] ( ۱) و ـــ اور ډکے۔(۲) اس فا ع ، فساد کوونکے ، فسادي ، لانجه مار ، جګړه تودوونکے

**د دوزخ اورلړونے کېدل** :-(اف) اص ، د دوزخ د اور سيخ جوړېدل يعني دوزخي کېدل ، دا د ښېرې يا بد دُعا په ډول وئيلے کېږي

**اورلړے** :-( اور + لَ + ړَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، ج : اورلړي ] و ـــ اور ډکے

**اور لښتے** :-( اور + لَ+ خْ + تَے يا لَ+ شْ+ تَے ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا، ج : اورلښتي ] غرئيز بادام ، ورلښتے۔

**اور لګاؤ** :-( اور + لَ+ ګاؤ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ] اور لګوونکے ، اور بلوونکے۔

**اور لګیت** :-( اور + لَ + ګيْ + تْ ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج: اور لګیتونه ] (۱) ګوګړ (۲) د اور تیلے ، ماچس

**اورلوبې** :-( اور + لو + بې ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، ج ] آتشبازي

**ـــــ کول** :- مص مت۔ اتشبازي کول۔

**ـــــ کېدل** :-مص لا۔ اتشبازي کېدل۔

**اورلے** :-( اُوْ + رْ + لے ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مؤ ] یو قسم وابنهٔ چې پلنې پاڼې لري۔او په سخته زمکه کښې پیدا کېږي۔

**اورمږ** :-( اور + مْ + ږْ [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) د پښتنو د یوې قبیلې نوم ، اُرمړ (۲) ناراسته او سست سړے ۔لکه متل:- " د اور مږو غوایه ئې په ملاسته کار کوي"

**اورمږک** :-( اور + مُ + ګَ + کْ + یا مُ + ژَ + کْ ) [ اف : پ (قاموس )اس ، مذ ، وا ، ج : اورمږکان ] یو ورکوټے خناور دے چې د مږک هومره وي او په اور کښې اوسي۔سمندر ۔

**اورمکے** :-( اور + م + کَے ) [ اف : پ ( قاموس) اس ، مذ ، وا ] د ډیوې پتنګ ، د شمع پروانه۔

**اورمولے** :-( اُوْ + رْ + مو + لَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اورمولي ] هغه مرض چې ماشوم په کښې بهېږي ۔ یعنې دستونه ورځي ۔ اُرمولے ، ورمولے ، مرمېلا ، مرمېلائے ، مرمولائے۔

**ـــــ کېدل** :-( اف ) اص۔د ماشوم بهېدل ، ماشوم ته دستونه ورتلل

**اورمېږ** :-( اُور + رْ + مې + ګ یا اور + مې + ژ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اُور مېږونه ] اورمېګ ، ورمېژ ، اُورمژ ، مغزے ، څټ ، غاړه

**ـــــ اړول** :-( اف ) لُغ : مغزے تاوول ، څټ ګرځول ، اص : سرکشي کول۔

**ـــــ تاوول** :-( ظفر ) اص : و ـــــ اور مېږ اړول۔

**ـــــ غزول** :-( اف ) لُغ : غاړه اوږدول ، غاړه کښېښودل ، اص : حکم منل ، تابع کېدل ، فرمانبرداري کول ، راضي کېدل۔

**کږول** :-( اف ) لُغ : غاړه کږول ، اص : امېد کول ، د څهٔ طمع لرل ، څهٔ غوښتل۔

**اورنے** :-( اُوْ + ر + نے ) [ اف : پ ( قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اورني ] هغه کپړه چې ماشوم په کښې نغړي۔اُرنے ، اونړے رنے ، لکه : " د نر زوے ژړا په اورني کښې معلومېږي۔"

**اورنوسے** :-( اور + نُو + سے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: اورنوسي ] د اوسپنې چمټه چې اور پرې را اخلي۔

**اورور** :-( او + رو + ر ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوروڼه ] ورور ، وربر ، رور۔

**اورورکے** :-( اور + ؤ + رْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اورورکي ] و ـــــ اور اُورکے۔

**اور وژونکے** :-( اور + و + ژُو + نْ + کے ) [ اف ، پ (قاموس) اس، فا ع مذ ، وا ] اور مړوونکے ( نوے لُغت )

**اور وژونے** :-( اور + وَ + ژُو + نے ) [ اف ، پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ] د اور مړولو اله ، ( نوے لُغت )

**اوروغ** :-( اَو + رو + غ ) [ اف : پ ( قاموس ) ص ، مذ ] ډول ، ښائست نزاکت ، خوند۔

**داوروغه لوېدل** :-( اف ) مح۔د ځوانۍ خوند رنګ او ښائست په شا کېدل۔

**اورول** :-( او +رَ + ول ) [ اف ، پ (قاموس) مص مت ] (۱) باران کول ، باران ورول (۲) نوستل ، خوارهٔ وارهٔ ویشتل ، تیت کول۔

**اورول** :-( اَو + ر + ول ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] اروول ، وورووَل حا : اوروي، ما : واوراوهٔ ، ا : وبه اوروي ، امر: واوروه۔ ( و ـــــ اورول )

**اورولے** :-( اَوْ + رَ + و + لے ) [ اف : پ ( قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : اورولي ، ( مؤ : اورولې ) ] ( و ـــــ اورولے )

**اورولے** :-( او + ر + و + لے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : اورولي ، ( مؤ وا ، ج : اورولې ) ] - ورولے۔

**اورون** :-( او + رُوْ + نْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اورنونه ] ورون ، ورین ، پتون۔

**اوره** :-( او + ر + ه ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مؤ ] (۱) نرۍ اوریځ ، اوریځه ، وریځه ، وریځ (۲) د سترګې خړه پرده ، د سترګې ګل

**ـــــ پیدا کېدل** :-( اف ) لُغ : وریځ پیدا کېدل ، اص : په مجلس کښې د نااشنا سړي راتلل

**ـــــ راتلل** :-( ظفر ) اص۔ ( و ـــــ پیدا کېدل۔

**په سترګو اوره پرېوتل** :-( اف ) لُغ : په سترګو کښې ګل پیدا کېدل ، په سترګو خړه پرده راتلل۔اص : ړندېدل ، څهٔ په نظر نهٔ راتلل

**په سترګو اوره راتلل** :-( اف ) اص۔و ـــــ په سترګو اوره پرېوتل۔

**اوره رنګ** :-( اَو + رَه + رَ + ن + ګ ) [ پ (ګن) اس ، مذ ] شیشي رنګ لمسي رنګ ، سرهٔ شان دارو چې د خوږ سترګو دپاره استعمالېږي

**اوره لړه** :-( اوره + ل + ړه ) [ پ (ظفر) اس ، مر ، مؤ ] نرۍ وریځ دوند

**اوره لنګ** :-( اوره +ل + نْ + ګ ) [ اف : پ (قاموس) اس مذ ] (۱) یو قسم غرئیز وابنهٔ ، چې وېخ ئې سُور وي او د څرمنې مشکونو رنګولو دپاره په کار راځي ۔ (۲) یو قسم دارو چې د پښې د پړسوب د علاج دپاره استعمالېږي۔

**اوره کے** :-( اوره + کے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوره کي ] و ـــ اور اورکے

**اورے** :-( اَو + رَے ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ، وا ، ج : اوري ] وویري ، اوري۔

**اُورے** :-( اُو + رے ) [ پ ، اس ، مذ ، وات، ج : اُوري ] ورغومے ، د ګډې یا مېږې بچے

**اورې** :-( او + رَے ) [ پ (کاکړ) اس ، مذ ] باران

**اُورې** :-( اُو + رے ) [ پ ، اس ، اش ] (۱) هورې ، هلته ، هغه ځاے هغه لوري ، هغه پلو ، په هغه طرف ، اورې ته۔(۲) هغه جهان آخرت۔

**اورې ته** :-( اُورې + ته ) [ پ ، اس ، اش ) و ـــ اُورې

**ـــــ دلې** :-( اُورې + دَ + لې ) [ پ ، ص ] دلې دورې ، هغه خوادېخوا ګېر چاپېر ، یو خوا بل خوا ، هورته ایسته ، یو پلو ، بل پلو ، اورې دورې۔

**ـــــ دُورې** :-( اُورې ، دُو + رې ) [ پ ، (ب،خ، ص ] و ـــ اورې دلې

**اُورۍ** :-( اُوْ + رَۍ ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] (۱) وُرۍ ، د غانښونو د وېخ غوښنه (۲) د نوکونو وېخ۔

**اُوریا** :-( اُو + ر + یا ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اوریاوې] باران ، د خېر رحمت۔

**اُوریا مېچ** :-( اُوریا + مې + چ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] د باران د مېچ کولو آله ، مقیاس المطر ( دا لُغت نوے جوړ کړے شوے دے )۔

**اُوریځ** :-( اُو+رْ+يَ+دژْ ) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ ،وا ، ج : اُرویځې] وریځ ، اوریځ ، اوره

**ـــــ خپرېدل** :-( اف ) اص۔اسمان صفا کېدل ، اسمان شین کېدل ، وریځ لرې کېدل ، اوره لرې کېدل۔

**ـــــ راخپرېدل** :-( اف ) اص۔وریځ راتلل ، وریځ په اسمان وېرېدل ، اوره راتلل۔

**ـــــ کېدل** :-( اص ) ( و ـــــ اوره پیدا کېدل )

**اَوربدل** :-( اَو + رې + دْ + ل ) [ پ ، مص مت ] ( و ـــــ اوربدل ) ( ددې سره تعلق لرونکي نور ټکي د اوربدل په پټۍ کښې وګورئ )۔

**اوربدل** :-( او + رې + دْ + ل ) [ اف : پ (قاموس) مص ، مت] باران کېدل ، وربدل ما: واورېدهٔ ، حا : اورېږي ، ا : وبه اوري یا اورېږي۔

**اوربدلے** :-( او +رې+ د+لَے ) [اف : پ (قاموس) مف، مذ ، وا ، ج: اوربدلي ] وربدلے

**اوربدنګ** :-( او + رِ + د + نْ + ګ ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] وربدنه ، اوربدنه، باران کېدنه۔

**اوربدنه** :-(او+رِ+د +نه ) [ اف :پ (قاموس) حمص] و ــ اوربدنګ

**اوربدونکے** :-( او + رِ + دُو+ن + کَے ) [ اف : پ (قاموس) فا ع ، مذ ، وا ، ج : اوردونکي ] وربدونکے ، باران کېدونکے۔

**اورونګ**:-( او + ر + وَ + نْ + ګ) [ اف: پ ( قاموس) حمص مذ ] باران کول ، ورول ، اورونه

**اَورونه** :-(اَو + رَ + و + نه ) [ اف : پ (قاموس ) حمص ] و ــ اورونګ

**اوروونکے** :-(او+رَ+وُو+نْ +کَے ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اورونکي، (مؤ : اوورونکې) ] باران کوونکے ، وروُونکے

**اَوروونکے** :-(اَو + رَ + وُو + نْ + کے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اوروونکي ، (مو: اوروونکې) ] و ــ اوروونکے۔

**اُوربکې** :-(اُو + رِ + کې ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] یو قسم نقش یا ګل دے چې د وړۍ نه جوړ شوي څیزونو کمبلو وغېره باندې کولے شي۔

**اوږ** :-( او + ږ ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج: اوړونه ] د جولاګانو د تنستې یو کالے یا اوزار۔

**اُوړبه** :- ( اُوْ + ړ + بَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] هغه سړے چې اوړهٔ خرڅوي۔

**اُوړکے** :-(اُو + ړْ + کے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اُوړکي (مؤ : اُوړکې) ] وروکے ، ورکوټے ، ووړکے ، ړوکے ، ووړ

**اوړل** :-(ا + و + ړ + ل ) [ اف : پ (قاموس) مص ، مت ] د چرګ او داسې نورو مارغانو یوه یوه دانه راخستل ، یوه یوه دانه بېلول اړول ، چونړ کول ، چونړل، ما: واوړلے ، حا : اوړي ، ا: وبه وړي امر : واوړه۔

**اوړل** :-(او + ړل ) [ پ (ظفر) مص ] (۱) وړل ، د یو ځاے نه بل ځاے ته رسول (۲) برداشت کول ، زغمل (۳) څهٔ خبر رسول۔

**اوړلے** :-(ا + و + ړَ + لے ) [ اف : پ (قاموس ) مف ، مذ ، وا ، ج : اوړلي ، (مؤ : اوړلې) ] یوه یوه دانه چونړ کړې شوې۔اړولې ، چونړلې شوې۔

**اوړم** :-(او + ړَ + م ) [ پ ، ص ] ړومبے ، اوړمے ، اولنے ، تېر ، مخکښې ، وړاندینے۔لکه : '' اوړم کال ښار ته لاړم ''

**اوړمے** :-(او + ړَ+ م +یَے ) [ پ ، ص، مذ، وا ، ج : اوړمبي ] وړمبے ړومبے ، اومړے ، اولنے ، لومبړے ، لومړے ، اول ، په سر کښې ، مخکښې ، ړومبنے۔

**اوړندوکے** :-(اَو + ړَ + نْ + دُو + کَے ) [ اف: پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اوړندوکي ] په یو حال نهٔ پاتې کېدونکے ، متلون مزاجه۔

**اوړنګ** :-(ا + وْ + ړَ + نْ + ګ ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] اوړنه ، اړونه ، دانه دانه چونړ کونه ،

**اوړنه** :-(ا+ و + ړ + ن + ه ) [ اف : پ (قاموس ) حمص ] و ــ اوړنګ

**اوړنۍ** :-(او + ړَ + نۍ ) [ پ ، ه : اوړهني ، اس ، مؤ ، وا ] لوپټه ، د ښځو په سرولو ورکوټے څادر ، چونۍ ، څکلے۔

**اوړنئے** :-(او + ړ + نَئے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوړني ] و ــ اوړنے

**په اُوړني کښې ویرول** :-( اص ) څوک د وخته ویرولو ، د چا په زړهٔ کښې د ورکوټوالي نه ویره کښېنول۔

**اوړنئے** :-( او + ړَ + نَئے ) [ پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : اوړني ] د اوړي سره تعلق لرونکے ، د ګرمۍ د موسم سره نسبت لرونکے۔

**اُوړوبے** :-(اُو + ړو + بَے ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، ج : اُوړوبي] ګړوبے ، اتوب ، خرړے ، شلالے ، ړوز۔

**ـــــ کول** :-( اف ) مص تر مت ، ګړوبے کول ، ګړوبے جوړول ، اتوب جوړول ، خرړے کول ، ړوز جوړول۔

**ـــــ کېدل** :- ( اف ) مص تر ، لا ، ګړوبے کېدل ، اتوب جوړېدل ، خرړے کېدل ، ړوز جوړېدل۔

**اوړوکے** :-(او + ړُو + کَے ) [ پ (سو ) اس ،ص،مذ ، وا ، ج : اُړوکي] (۱) وړوکے ، اوړکے ، هلک ، کمکے ، ککے ، کمکلے ، کمکوټے ورکوټے ، کوچنے ، ماشوم ، وړیکا ، ایرکے (۲) اص : د مینې محبت په ډول وئیلے کېږي۔

**اوړول** :-(اُو+ړَ + وَ + ل ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] اوړه کول ، ووړل ، اړل ، ډېره کول ، ما : اوړهٔ کهٔ ، حا : اُوړوي ، ا : اُوړهٔ به کي ، امر : اُوړهٔ که ( نوټ : د حال نه بغېر نور ګردانونه د اوړه کول مصدر نه وتلي دي )

**اوړونکے** :-( ا + و + ړُو + ن + کَے ) [ اف : پ (قاموس) فا ع ، مذ ، وا ، ج: اوړونکي ، (مؤ : اوړونکې ) ] اړوونکے ، دانه دانه چونړ کوونکے

**اُوړوونکے** :-(اُو + ړَ + وُوْ + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اُوړوونکي ] اوړه کوونکے ، اړه ونکے ، مېده کوونکے

**اوړه** :-(او + ړَه ) [ پ ، امر ] وړهٔ ، یوسه ،

**اوړه** :-( او ړَه ) [ پ (ګن) اس ، مؤ ] اړم ، اوړم ، هغه لرګے چې په کلو کښې د ور بندولو دپاره لګولے شي۔

**اوړهٔ** :-(اُوْ + ړهٔ ) [ پ ، اس ، مذ ] اُړه ، د وړه ، ووړهٔ ، دوڼه ، دیړه ، داڼه

**ـــــ اوبهٔ کول** :-( اف ) لُغ : دوړه او اوبهٔ یوځاے کول ، اص : یو څیز ډېر زیات مېده کول ، ښهٔ وړول او پسته ول ۔

**ـــــ کېدل** :-( اف ) اص : اوړهٔ زیات مېده کېدل ۔

**ـــــ سرکه کېدل** :-( اف ) اص ۔ اوړهٔ زیات خمبیره کېدل ، چې خوند ئې تریو شي۔

**ــــ شوے** :-(مف ) اوړهٔ شوے ، مېده شوے ، ووړه شوے۔دوړه یا داڼه شوے ، اړلے شوے۔

**ـــــ کول** :-( مص تر مت ) اوړهٔ کول ، دوړه کول ، ووړهٔ کول ، دوڼه کول ، دیړه کول ، داڼه کول۔

**ـــــ کونه** :-( اف ) حمص۔اُوړه ونه ، مېده کونه۔

**ـــــ کېدل** :-( مص تر لا ) اوړه کېدل ، دوړه کېدل ، ووړهٔ کېدل ، دوڼه کېدل ، دیړه کېدل ، داڼه کېدل۔

**ـــــ کېدنه** :-( اف ) حمص۔اوړهٔ کېدنه ، مېده کېدنه۔

**په اُوړو کښې شګه درلودل** :-( اف ) لُغ : په اُوړو کښې د شګې موجودګي۔ اص : (۱) په څهٔ څیز کښې شک لرل۔(۲) څهٔ مطلبي څیز په زړهٔ کښې یاد ساتل

**په اُوړو کښې شګه لوېدل** :-( اف ) لُغ : په اُوړو کښې شګه پرېوتل۔اص : شک من کېدل

**د اوړو پزه وراېښودل** :-( اف ) لُغ : د اوړو پوزه ورته جوړول، اص : د چا بدنام کس پرده داري کول ، د چا شرم حیا ساتل۔

**دَاوړو پیشو جوړول** :-( ظفر) لُغ : د اُوړو نه پیشو جوړول۔اص : (۱) د څهٔ خبرې نه هسې په چل ول ځان خلاصول (۲) په چل ول ځان مضبوط ښکاره کول۔

**د چا په ژرنده اوړهٔ کول** :-(اف) لُغ : د چا په ژرنده اوړهٔ اوړل یا مېده کول۔اص : د چا سخت کس سره لېږ دېږ کول۔نوټ : دا جمله د نفي په ډول هم استعمالېږي۔

**مېده مېده اُوړهٔ کول** :-(اف) لُغ : اوړهٔ ډېر زیات نرې کېدل ،
اص : (۱) زیاته عاجزي او زاري کول (۲) د یرې په وجه ورو ورو او پستې پستې خبرې کول۔

**اوړے** :-(او + ړَے ) [ پ ، اس ، مذ، وا ، ج : اوړي ] د ګرمۍ موسم ، ووړے ، دوبئے ، وبړه ، وبړائے

**ـــــ ژمے** :-( اوړے+ژ + مے ) [ پ ، اس مر ، مذ، وا ، ج : اوړي ژمي] د ګرمۍ او د یخنۍ موسم ، ووړے ژمے ، دوبئے زمئے

**د اُوړي مر** :-( اص ) ځل وهلے ، ګرمۍ وهلے ، د ګرمۍ له کبله دومره تږے

شوے چې د لاده باده پرېوتے وي۔

**اُوړي** :-(او + ړِي) [اف : پ (قاموس) اس ، ج ] (۱) هغه تارونه چې جولاګان د ووډلو يا اوډلو د تنستې تارونه د دوي په ذريعه لاندې باندې کوي (۲) د ووډلو اوزار يا کالي۔

**اوړيا** :-(او + ړ + يا) [پ ، ص] وړيا ، وېړيا ، مفت، ارزان ، ډېر ارزان ، بې بيعې۔

**اوړېدل** :-(او + ړې + د + ل) [پ ، مص لا] و ـــ اوړېدل

**اوړېدل را اوړېدل** :-(اص) (۱) اخوا دېخوا ګرځېدل ، هلې ځورې کېدل ، اواره ګرځېدل (۲) وخت تېرول ، کار په شوق نۀ کول۔

**په بلا اوړېدل** :- لُغ : د بلا يا بؤ سره مخامخ کېدل ، اص : (۱) په څۀ مصيبت اخته کېدل ، په څۀ کشاله پېښېدل ، د چا سره دښمني پېدا کېدل (۲) په ناکاره ښځه اوښتل۔

**په چا اوړېدل** :- لغ : د چا د سر دپاسه ټوپ وهل ، اص : (۱) په چا ناکاره کس اوښتل (۲) ناڅاپي د چا سره مخامخ کېدل ۔

**په دېوال اوړېدل** :-(اص) د دېوال نه بل طرف ته ټوپ وهل ، او کوزېدل ، د څۀ څيز په بهېدو بهېدو په دېوال بل مخ ته تلل۔

**دُنيا په بل مخ اوړېدل** :-لُغ : دُنيا بدلېدل ، په دنيا کښې انقلاب راتلل۔ اص : (۱) ډېر زيات کار کېدل ، د امېد نه زيات کار کېدل (۲) ډېر زيات شور ژوړ کېدل (۳) د چا په مرګ د خلقو ډېر زيات خفه کېدل ۔

**لوټ په لوټ اوړېدل** :-(اص) (۱) په يو مخ او په بل مخ رغړېدل ، په خربازو اوړېدل (۲) ډېر بې قراره کېدل ، د درد له کبله زيات بې ارامه کېدل۔

**اُوړېدل** :-(اُو + ړې + دَ + لْ) [پ ، مص لا] اوړۀ کېدل ، انېدل ، مېده کېدل ، اوړۀ جوړېدل ۔ما : اوړۀ شه ، حا : اوړېږي ، ا : اوړۀ به شي۔

**اُوړېدنه** :-(اُو + ړې + د + نه) [پ ، حمص] اوړۀ کېدنه ، انېدنه ، مېده کېدنه ، اُوړۀ جوړېدنه۔

**اُوړېدو نکے** :-(اُو + ړې + دُو + ن + کَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: اُوړېدونکي] اوړۀ کېدونکے ، انېدونکے ، مېده کېدونکے ، دوښه کېدونکے۔

**اوړيکے** :-(او + ړي + کَے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : اوړيکي] ماشوم هلک ، کړاچے

**اوز** :-(او + ز) [اف ، پ (قاموس) مذ ] عدد مجهول ، دومره قدرې

**اوزار** :-(اَو + زا + ر) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج] کالي ، رَچ ، د کار اسباب ، لکه : "ځان سره خپل اوزار واخله"

**اُوزر** :-(اُو + زَ + رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اُوزرونه] وزر ، عذر ، د مړي فاتحه يا لاس نيوے۔

**ـــ کول** :-(اص) د مړي فاتحه کول ، د مړي لاس نيوے کول۔

**ـــ مُبارک**:-(سو) اص۔ غم ښادي کول ، مُبارکي او لاس نيوے کول

**اوزغنجن** :-(او + ز + غَ + نْ + ج + ن) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، (مؤ ، وا: اوزغنجنه ،و ج : اوزغنجنې) ] اوژغنجن ، د وژغنې نه جوړ څيز ، د بزو د وېښتو نه جوړ څيز۔

**اُوزغنه** :-(اُو + ز + غُ + نه) [اف : پ (قاموس) اس ،مؤ] د بزې وېښتۀ اوژغونه ، وژغونه۔

**اُوزکے** :-(اُو + ز + کَے) [پ (وز) اس ، مذ ، وا ، ج : اُوزکي] د لرګو پېټے ، د لرګو بار ، وزاکاۓ۔

**اوزګار** :-(او + ز + ګا + ر) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج (مؤ ، وا: اوزګاره ، ج : اوزګارې) ] وزګار ، فارغه ، ليه ، بې کاره۔

**ـــ شوے** :-(اف) (۱) وزګار شوے ،فارغ شوے ، خالي شوے (۲) بې کاره ، د څۀ کار نه ويستلے شوے۔

**ـــ کړے** :-(اف) (و ـــ اوزګار شوے)

**اوزګارتوب** :-(اوزګار + تو + ب) [پ ، حمص ] وزګارتيا ، وزګارېدنه ، اوزګارتېب ،

**اوزګارتيا** :-(اوزګار + تِ + يا) [پ ، حمص] و ـــ اوزګارتوب۔

**اوزګار والے** :-(اف) (و ـــ اوزګارتوب)

**اوزګارول** :-(او + ز + ګا+ رَ + وَ + ل) [پ ، مص ، مت] فارغول ، وزګارول ، خالي کول ، بې کاره کول ، د کار نه ويستل۔ ما : اوزګار کۀ ، حا : اوزګاروي ، ا : اوزګار به کي ، امر: اوزګار که ( د حال نه سېوا نور فعلونه د اوزګار کول نه وتي دي)

**اوزګارونګ** :-( او + ز + ګا + ر+ وَ + نْ + ګ ) [ اف : پ (قاموس ) حمص] اوزګارونه، خالي کونه ، فارغونه ، بې کاره کونه ، د څۀ کار نه ويستنه۔

**اوزګارونه** :-(او + ز + ګا + ر + و + نَه) [اف: پ (قاموس) حمص) و ـــ اوزګارنګ۔

**اوزګار وونکے** :-(او + ز + ګا + ر + وُو + ن + کے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اوزګاروُونکي ] وزګاروُونکے ، فارغوونکے ، خالي کوُونکے ، بې کاره کوونکے ، د کار ويستونکے۔

**اوزګارېدل** :-(او + ز + ګا + رې + د + ل) [پ ، مص لا] وزګارېدل ، فارغېدل ، خالي کېدل ، فرصت موندل، بې کارَ کېدل ۔ ما: اوزګار شۀ ، حا : اوزګارېږي ، ا : اوزګار به شي (د حال نه سېوا نور فعلونه د اوزګار کېدل نه راوتي دي)

**اوزګارېدنګ** :-( او + ز + ګا + رې + د + نْ + ګ ) [ اف: پ (قاموس) حمص] اوزګارېدنه ، وزګارېدنه ، فارغېدنه ، خالي کېدنه ، بې کاره کېدنه ، فرصت موندنه۔

**اوزګارېدنه** :-( او + ز + ګا + رې + د + نَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص] (و ـــ اوزګارېدنګ)

**اوزګارېدونکے** :-(او + ز + ګا + رې + دُو + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اوزګارېدونکي ] وزګارېدونکے ، فارغېدونکے ، خالي کېدونکے ، بې کاره کېدونکے ، فرصت موندونکے۔

**اوزګارېدۀ** :-(او + ز + ګا + رې + دَ، ۀ) [پ ، ص ] (۱) وزګارېدۀ ، فارغېدۀ ، خالي کېدۀ ، فرصت موندلے کېدۀ ، لکه : " زما اوزګارېدۀ ګران دي " (۲) بې کاره کېدۀ ، د کار نه ويستلے کېدۀ

**اوزګړے** :-(اُو + ز + ګ + ړَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اُوزګړي ] د بزې نر ، د چېلۍ نر ، پسۀ ، وَز۔

**اوزمېيل** :-(او+ ز + مې + يَل) [پ (وز + ب ، خ) مص] و ـ ازمايل

**اُوزه** :-(اُوْ + زَه) [پ (ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج : اُوزې] بزه ، چېلۍ، وُزه

**اوزے** :-(او + زَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] وزر ، لېچه، د پسۀ يوه پښه

**ـــ اوزے کول** :-(اف) اص۔ اندام اندام کول ، په اندامونو بېلول

**اُوزےلکے** :-(اُو + ز ے + ل + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] يو قسم پۍ لرونکي وابښۀ دي چې اوږدې اوږدې پانړې ئې وي۔

**اُوزئيے** :-(اُو + ز+ يَے) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] د بزې سره تعلق لرونکے ، د بزې ، د وزې ، وزئين۔

**اُوژد** :-(اُو + ژ + د يا اُو + ګ + د) [پ (ب ، خ ، ګن) صد ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: اوژده ، ج : اوژدې) ] اوږدې ، لوئې۔

**اوژرے** :-(اُو + ژ + رے) [اف : پ (قاموس) ه : اوجهړي ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوژري] اوجرے ، د ځناور لرے۔

**اوژغونجن** :-(او+ ژ + غو + ن + ج + ن) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ،وا (مؤ، وا : اوژغونجنه ، ج : اوژغونجنې) ] و ـ اوزغنجن

**اوژغونه** :-(او + ژ + غو + نَه) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اوژغونې ] و ـــ اوزغنه۔

**اوژکۍ** :-(اُوْ + ژَ + کۍ) [پ (خ) اس ، مؤ ] اوږکۍ ، اوږه ، د پيازو په شان يو

غونډ څیز چې پلې لري.-اوړکې.

**اوژمکې** :-(اُو + ژ + م + کی ) [پ (وز) اس ، مؤ ] سپوږمۍ ، میاشت اُوړمکه.

**اوژه** :-(اُو + ژَه ) [پ (خ + گن ) اس ، مؤ ، وا ، ج : اوژې ] و ـ اوژکې.

**اوژے** :-(او + ژَے ) [پ (خ + گ ) اس ، مذ ، وا ، ج : اوژي ] اوړے د غلې پیمدلو یوه پیمانه.

**اُوژے** :-(اُو + ژَے ) [پ (وز) ص ، مذ ، وا ، ج : اوژي ] وړے ، اوړے وژے

**اوژی** :-(ا اُو + ژیی ) [پ (ب + خ + گن ) اس ، مؤ ] اوړی ، د ښځو د غاړې یو کالے.

**اوړد** :-(اُو + گ + د یا اُو + ژ + د ) [پ ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا : اوړده ، ج : اوړدې ) ] و ـــ اُوژد.

**اوړداندے** :-(اُوړد + اَ + ن + دَے ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اوړداندي ] دور اندېش ، هغه څوک چې فکر ئې تر لرې رسي.

**اوړدتوب** :-(اُوړد + تو + بْ ) [پ ، ص ] اوړدوالے ، اوړدتیا.

**اوړدتیا** :-(اوړد + ت + یا ) [پ ، ص ] و ـــ اوړدتوب.

**اوړدغوږے** :-(اُاوړدَ + غو + گَے + یا غو + ژَے ) [اف ، پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، ج : اوړدغوږي ] لوے غوږے ، چې غوږونه ئې لوے وي ، خر.

**اوړدلکے** :-(اوړد + لَ + کَے ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ،وا ، ج : اوړد لکي ] چې اوږده لکۍ ئې وي.-د یوې مشهورې مرغۍ نوم دے.

**اوړدلیندے** :-(اُوړد + لِيْ + نْ + دَے ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اوړد لیندي ] یو قسم ټوپک چې اوږده لینده یې کښې لګېدلې وي.

**اوړدوالے** :-(اوړد+ وا +لَے ) [پ ، ص ، مذ ، وا ] اوژدوالے ، لمبائي

**اوړدول** :-(اُو + ژ+ دَ + وَلْ + یا اُوْ + گْ + دَ + وَلْ ) [پ ، مص مت ] غزول ، اوژدول ، ویږدول ـ طول ورکول ، ما : اوړد به کي ، حا: اوړدوي ، ا : اوړد به کې ، امر : اوړد که (د حال نه سېوا نور فعلونه د اوړد کول نه وتې دي )

**خبره اوړدول** :-(اص ) (۱) خبرې ته طول ورکول ، د نه څۀ خبرې نه لویه قیصه جوړول.(۲) په معمولې خبره جګړه او لانجه جوړول.

**اُوړدونګ** :-(اُوْ + ژْ + دَ + وَ + نْ + گ یا اُوْ + گ + دَ + وَ + نْ گ ) [اف : پ (قاموس) حمص ] اوړدونه ، اوژدونه ، طول ورکونه ، غزونه

**اُوړدونه** :-(اُو + ژ + دَ + وَ + نَه یا اُوْ + گْ + دَ + وَ + نَه ) [اف ، پ (قاموس) حمص] و ـــ اوړدونګ.

**اُوړدوونکے** :-(اُوْ + ژْ + دَ + وُوْ + نْ +کَے یا اُو + گ + دَ + وو + نْ + کَے ) [پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : اوړدوونکي ] اوژدوونکے ، غزوونکے ، طول ورکوونکے

**اُوړدۀ** :-(اُوْ + ژْ + دَۀ یا اُوْ + گ + دَۀ ) [پ ، ص ، مذ ، ج ، وا : اوړده] اوژدۀ ، لوے ، طویل.

**اوړدۀ سارۀ** :-(اُوړدۀ + سارۀ ) [پ (شن) اس ] په اُوړد والي او پلنوالي ، طول عرض

ـــــ **غاښونه لرل** :- لُغ : لوے غاښونه لرل.-اص : زیاتي خور،هغه څوک چې د بل حق خوري

ـــــ **غنم** :-لُغ :- لوے غنم ، اص : هغه کار چې په کولو کښې زیات وخت اخلي نو وائي چې "دا اوړدۀ غنم دي ".

ـــــ **لاسونه درلودل**:-(اف ) لُغ :چې لاسونه ئې لوے وي اص (۱) واک اختیار لرل وس لرل ، لاس لرل ، زور لرل (۲) د چا په مال په زور قبضه کولو طاقت لرل

**تر اُوړدۀ په سارۀ لویول** :-(اف ) لُغ : د اُوړدوالي نه په سور والي لویول.-اص : په چا په لټو ختل ، د چا په لټو وهل.

**اُوړده مېږیانه** :-(اُوړده + مې + ژ یا نه یا مې + گ + یا + نه ) [اف ،پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اُوړدې مېږیانې ] (۱) پیلي ، لوے تور مرچ (۲) د ماشومانو یوه لوبه ده چې کوم هلکان پړۀ شي نو په هغوي د بلې ډلې هلکان سورلي کوي.

**اوړدوالے** :-(اُوړد + وا + لَے ) [پ ، ص ، مذ ] و ـــ اوړدتوب.

**اوړددېدل** :-(اُو + ژ +دې + ـَ +ل یا اُو+ گ + دې +د+ ل ) [ پ، مص لا (۱) اوژېدل، ویږدېدل ، لوئیدل (۲) ډېر وخت تېرېدل (۳) اټالېدل ، ایساربدل.-ما : اُوړد شۀ ، حا : اُوړدېږي ، ا : اُوړد به شي، امر : اُوړد شه.

**اوړدېدنګ** :-(اُو + ژ + دې + د + نْ +گ یا اُو + گ + دې+ دَ+نْ + گ) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱) اوړدېدنه ، اوژدېدنه ، لوئیدنه ویږدېدنه (۲) ډېر وخت تېرېدنه (۳) اټالېدنه ، ایسارېدنه.

**اوړدېدنه** :-(اُوْ + ژ + دې + دَ + نَه یا اُوْ + گ + دې + دَ + نَه ) [پ حمص] و ـ اوړدېدنګ.

**اوړدېدونکے** :-(اُو + ژ + دې + دُو + نْ + کَے یا اُو + گ + دې + دُو + نْ + کَے ) [پ ، اس ، مف ، مذ ، وا ، ج : اوړدېدونکي ] (۱) اوژدېدونکے ، غزېدونکے ، لوئېدونکے (۲) زیات وخت تېرونکے (۳) اټالېدونکے ، ایسارېدونکے

**اوړدېدۀ** :-(اُو + ژ + دې + دۀ یا اُو+ گ+ دې + دَۀ ) [ پ ، حمص ](و - اُوړدېدنګ )

**اُوړکے** :-(اُو+ ژَ + کے یا اُو + گَ + کے ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ] و- اُوژکې

**اُوړمکه** :-(اُو + ژ + م + کَه یا اُو + گْ + مَ + کَه ) [اف : پ (قاموس) ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اوړمکې ] و ـــ اوژمکې

**اوړمکې** :-(اُوْ+ ژْ + مَ + کی یا اُو + گَ + م + کی ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] (۱) سپوږمۍ (۲) د سپوږمۍ رڼا.

**اُوړه** :-(اُوْ+ژه یا اُو+گه ) [پ ،اس ، مؤ ، وا ، ج : اوړې ] و ـ اوژکې.ـ متل : "چې اوړه نۀ خوري بوئي به ترې نۀ ځي "

**اُوړه** :-(اُوْ + گه + یا اُو + ژَه ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اوړې ] اُوژه ، ایژه ، شانه.

**اُوړه په اُوړه تلل** :- لُغ : جُخت جخت تلل ، یو شان یُون یا تګ کول اص : په څۀ کار یا مقابله کښې برابر برابر تلل.

**اُوړه په اُوړه کېدل** :- لُغ : اوږې سره اوړه برابرول ، اص : (۱) د چا سره د څۀ کار دپاره سم اودرېدل ، د چا سره مدد کول (۲) د چا سره سیالي کول.

ـــــ **جنګول** :- لُغ : د بل د اوږې سره خپله اوړه لګول.-اص : چا ته د مقابلې دپاره پټون ټپول.

ـــــ **سپکول** :-(اف ) اص.-د چا سره مدد کول ، د چا نه پېټے اخستل د چا په غم کښې شریک کېدل ، چا سره لاس کول ، د چا بار اخستل.

ـــــ **سپکېدل** :-(اف ) اص.-د چا د امداد یا لاس کولو په وجه بوج کمېدل یا سړ بوخي رسېدل ، د چا په وجه پېټے کمېدل.

ـــــ **کښل** :-(اف ) لُغ : اوړه ایستل ، اُوړده څړه کول ، اوړده خالي کول.-اص : د کار نه ځان غړول ، کار نۀ کول ، کار ته بانې جوړول ، کار نه سترګې پټول.

ـــــ **کښېکښول** :-(اف ) لُغ : اُوړه کړول .-اص : کار ته اوړه ورکول ، کار کول ، په کار ځان سترے کول ، کار ته ورلاندې وتل.

ـــــ **لګول** :-(اف ) لُغ : اوړه کښېنول.-اص : طاقت موندل.

ـــــ **لګېدل** :-(اف ) لُغ : اوړه کښېولے کېدل ، اص : طاقت لرل.

ـــــ **نیول** :-(اف ) لُغ : اُوړده کښېنول.-اص : څۀ کار کښې مضبوطیا موندل ، څۀ کار ته ورلاندې وتل.

ـــــ **وروړل** :-(اف ) لُغ : اوړه ورته رسول.-اص (۱) په څۀ کار کولو کښې طاقت خرڅ کول، او ځان ورته نیول (۲) په کار کولو کښې مدت کول ، مرسته کول

**—— ورسره لګول** :-( اف ) لُغ : اړخ ورسره لګول ـ اص : د څۀ خبرې سمون خوړل ، څۀ خبره د بلې سره برابرېدل ـ

**—— ورکول** :-( اص ) (۱) څۀ شيز ته د اوړې ټېک ورکول ، څۀ څېز ته لاندې اوړه ورکول ، کار ته ملا تړل ، په مينه يو کار کول (۲) د مړي جنازې ته اُوړه ورلاندې کول ـ

**—— ورلاندې کول** :-( اص ) ( و —— اُوړه ورکول )

**په اُوږه بار کېدل** :- لُغ : په اوږه پېټی کېدل ، اص (۱) د بل په اسره ژوندون تېرول ، بې کاره کښېناستل او بل ته مصيبت جوړېدل ، د خپلې ګټې وټې قابليت نۀ لرل (۲) خپل کار په بل اچول ـ

**په اُوږه ګرځول** :- لُغ : په اوږه وړل ـ اص : د چا ډېر زيات خدمت کول زيات اخلاص او مينه ښکاره کول ـ د زوے په شان په ناز شورول

**په اُوږه وراچول** :- لُغ : په اوږه ورته کښېښول ـ اص (۱) چا ته کار سپارل ، د کار ذمه داري په بل غورځول (۲) په بل ورتپل ـ

**په اُوږو اچول** :- لُغ : په اوږو کښېښول ،اص : څادر ، پټو يا کمبل په اوږو کښېښول

**اُوږه ور** :-( اُوږه + وَ + رْ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا : اوږه وره ج: اوږه ورې ) ] لُغ : د لويو اوږو خاوند ، هغه څوک چې اوږې ئې لوئې وي ـ اص : مضبوط ، طاقتور ، زورور ـ

**اُوړے** :-( او+ګےَ يا او+ژَے ) [ پ،اس ، مذ ، وا ، ج : اوړي ) و ـ اوژے

**اُوړے** :-( اُوْ + ګَے يا اُو + ژے ) [ پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : اُوړي ] وژے ، نهر ، شوم (ګن)

**—— تېرے** :- لُغ : وژے تږے ، نهر نهور ، اص : خوارېږک ، د مېرې غز ، بې اسرې ، ډېر غريب ـ

**اُوړۍ** :-( اُو + ګۍ يا اُوْ [ ژَۍ ) [ پ ، اس ، مؤ ] اُوژۍ ، د زنانۀ د غاړې کالے ـ

**—— غاړه** :-( اص ) د قميص غُنډۍ غاړه يا ګرېوان ـ

**اوس** :-( او + س ) [ پ ] دغه وخت ، په دې ټکي ، په دې دم ، په دې ساعت ، په دې ګړۍ

**—— اوس** :-( اص ) په دې ساعت ، په دې وخت ، فوراً ـ لکه : "اوس اوس دا کار ختم کړه "

**تر اوس پورې** :-(اص ) تر اوسه ، تر اوسه پورې ، تر دې وخته ، ان تر دې وخته

**تر اوسه** :-(اص ) ( و —— تر اوس پورې )

**اوسار** :-( اَوْ + سا + رْ ) [ اف : پ (قاموس ) فا : افسار ، اس ، مذ ، وا ج: اوسارونه ] ترسېرے ، هغه تسميه چې د اس سر ته وراچولے شي ـ دا ټکے د افسار نه مفغن کړے شوے دے ـ

**اوسارول** :-(اُو + سار + رَ + وَ + ل ) [ اف : پ (قاموس ) مص ، مت ] (۱) ترسېرے وراچول ، ترسېرے کول (۲) تېرايستل ، تېرباسل ، غُولول ، (۳) تابع کول ، مطيع کول ، حکم لاندې راوستل ـ ما : اُوسارکۀ ، حا : اُوساروي ، ا : اُوساريه کي ، امر : اُوسارکه ( د حال نه بغير نور فعلونه اُوسار کول نه وتلي دي )

**اوساروونکے** :-( او+ سا + رَ + وُوْ + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اوساروونکي ] (۱) تېرسېرے وراچوونکے ، ترسېرے کوونکے (۲) تېر ايستونکے ، تېرباسونکے ، غولونکے (۳) تابع کوونکے ، خپل حکم لاندې راوستونکے ـ

**اوسان** :-( اؤ + سا + نْ ) [ ه ، اس ، مذ ،وا ] حس ، هوش حواس ، وار ، دور ، حوصله ـ

**—— تلل** :-(اص ) وارخطا شوے ، سخت حېران شوے ، د ځان نه ناخبره ـ

**—— ختا کېدل** :-(اص ) وارختا کېدل ، يرېدل ، په ناڅاپي واقعه اکابکا کېدل ، حق حېرانېدل ،

**اوسانه** :-( اَو + سا + نه ) [ پ ( عا ) فا : افسانه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اوسانې ] قيصه ، د ځانه جوړه کړې قيصه ، قيصۍ ، مساله

**اوسپن تورے** :-( اوس + پَ + نْ + تو + ګے يا تو + ژے ) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ،وا ،ج : اوسپن توړي ] سوان ، هغه آله چې اوسپنه پرې توږلے شي

**اوسپنخړے** :-( اوس + پَنْ + خَ + ړَے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوسپنخړي ] اُسپنخړي ، سپينخړي ، د اوسپنې د مېل نه چې کانړے شان جوړ شي ـ

**اوسپنخوره** :-( اوسپن + خُو + ره ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] د اوسپنې زنګ، مورچه

**اوسپنخيرے** :-( اوسپن + خي + رَے ) [ اف : پ ( قاموس) اس ، مذ ] زنګ ، د اوسپنې دپاسه چې سُوربخن شان مېل اوخېژي ـ

**اوسپنکښ** :-( اوسپن + کَ + خْ + يا کَ + شْ ) [ اف : پ (قاموس ) اس، مذ ، وا ، ج : اوسپنکښونه ] مقناطيس

**اوسپنمزے** :-( اوسپن + مْ + زے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د اوسپنې تار ، خاردار تار ـ

**اوسپنه**:-(او + س + پْ + نَ ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اوسپنې ] ( و —— اُسپنه )

**اوستاد** :-( او + س + تا+ د ) [ پ ، فا ، اُستاد ، اس ، مذ ، وا ، ج: اوستادان ( مؤ ، وا:اوستاده ، ج : اوستادې ) ] و —— اُستاد

**اوستادګيري** :-( اوستاد + ګي + ري ) پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : اوستادګيرۍ ) (۱) اُستادي ، معلمي ، د معلمۍ پېشه ـ (۲) چالاکي ، په چل ول کښې ـ

**اوستادي** :-( اوس + تا + دي ) [ پ ، ص ، مؤ ، وا ،ج : اوستادۍ ] (۱) اُستاد ګيري، هنرمندي (۲) چالاکي ، دوکه بازي

**اوستاذ** :-( او + سْ + تا + ذ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوستاذان ، مؤ، وا : اوستازه، ج : اوستازې ) ] و —— اوستاد

**اوستاذګيري** :-( اوستاذ + ګي + ري ) [ پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : اوستاذګيرۍ ] (و —— اوستادګيري )

**اوستاذي** :-(اوس+تا+ذي ) [ پ،ص،مؤ،و،ج:اوستاذۍ ] و ـ اوستادي

**اوستربل** :-( اوس + تَ + رْ + بْ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] روستو ، ورستو ، شاته ، په شا ـ

**اوسترے** :-( اوس + تْ + رے ) [ اف ، پ ( قاموس ) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اوستري ] روستنے ، ورستنے ، ورستے ، ويساړے ، شاتنئے ، د ټولو نه شاته ، اخري ـ

**اوسترۍ خور** :-( اس + ت + رَۍ + خو + ر ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مؤ ، وا ] د مياشتې نوم ، جمادي الثانيه ، روستۍ خور ـ

**اوستکار** :-( اوس + تَ + کا + رْ ) [ پ،اس فا ع،مذ ،وا ، ج : اوستکاران مؤ ، وا: اوستکاره ، ج : اوستکارې ) ] ( و —— اُستکار )

**اوستکاري** :-( اوس + تَ + کا + ري ) [ پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : اوستکاري ] کاريګري ، کسب ګري ، اُستاذي ـ

**اوسرے**:-( اوس +رَے ) [ اف : پ (قاموس ) اس ،ص ،مذ،وا، ج : اوسري ] و ـ اوسترے

**اوسريځ** :-( اوس+رې+دْ ز ) [ اف :پ (قاموس) ص ، مذ ] و ـ اوسترے

**اوسرۍ خور** :-( اوس + رۍ + خو + ر ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] و —— اوسترۍ خور ـ

**اوسط** :-( اَو + سَ + طْ ) [ ع ، ص ، مذ ، وا ، ج : اوسطونه ] مېنځنے ، په مېنځ کښې ، مېنځ و مانه ، درميانه ـ

**اوسکارونکے** :-( اوس + کا + رُو + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ،

وا ، ج : اوسکارونکي ] سپے په چا پسې کوونکے یا تو کوونکے ۔سپي ته د حملې ترغیب ورکوونکے ، سپے اچیش کوونکے ، سپے سُو کوونکے ۔
**اوسکارنه** :-( اوس + کا + رَ + نَ ) [ اف : پ (قاموس ) حمص ] سپے توکونه ، سپے په چا پسې کونه ، پارونه یا اوسکارونه ، اچیش کونه یا سُوکونه۔
**اوسکارلے** :-( اوس + کا + رَ + لَے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : اوسکارلي ] توکړے ، حملې ته اماده کړے ، کشکارلے ، هښکارلے ، سپے په چا پسې کړے ، اچیش کړے ، سوکړے۔
**اوسکارل** :-( اوس + کا + رَ + لْ ) [ اف : پ (قاموس ) مص مت ] په چا پسې سپي تو کول ، په چا د حملې کولو دپاره سپے تو کول ، هښکارول ، کشکارل ، وچیکش کول یا سُوکول ، ما: وُاسکارهٔ ، حا : اسکاري ، ا : وُبه اسکاري ، امر : وُاُسکاروه۔
**اوسن**:-( او + سَ + نْ ) [ اف : پ (قاموس ) مذ ، وا ، مؤ ،وا ، اوسنه ] اوسنے ، موجوده ، د اوس وخت۔
**اوسند** :-( او + سَ + نْ + دْ ) [ اف: پ (قاموس ) مذ] حاضر ، موجوده۔
**اوسنے** :-( او + سَ + نے ) [ پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : اوسني ] د اوس وخت ، ددې وخت ، د موجوده وخت ، د پخواني ضد ۔
**اوسوز** :-( او + سو + زْ ) [ اف : پ (قاموس ) فا : افسوس ، مذ ، وا ، ج : اوسوځونه ] افسوس،اوسوس، حیف ، کاشکې ، پښېماني ، لاس مښل ، ( دا لفظ د ..... کول ، کېدل سره هم ویلے شي )
**اوسوز پر راتلل** :-( اف ) اص۔(۱) د چا په بد حال اوسوس کول۔د چا په خوارۍ یا بد حالۍ زړهٔ سول (۲) په څهٔ کار پښېمانه کېدل ، په کړي کار لاس مښل ، په کړي کار لکه د مچ منګُلې مروړل۔
**اوسوزے** :-( اهٔ + سو + زَے ) [ اف : پ (قاموس) اس، فا ع ، مذ ] افسوس کوونکے ، پښېمانه کېدونکے ، لاس مښونکے۔
**اوسوس** :-( او + سو + س ) [ پ (عا) فا : افسوس ] و ـــ افسوس
**اوسول** :-( او + سَ + وْ + لْ ) [ پ ، مص مت ] ابادول ، استول ، اېسول، مېشتهٔ کول ، ساتل ، پنډول ، ما : وُاوساوهٔ ، حا: اوسوي ، ا : اوبُه اوسوي ، امر : وُاوسوه۔
**اوسولے** :-( او + سَ + وَ + لَے ) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : اوسولي ] مېشت کړے شوے ، اباد کړے ، اېسولے ، وسولے ، استوږن شوے
**اوسون** :-( او + سُو + نْ ) [ اف : پ (قاموس) فا: افسون ، اس ، مذ، وا ، ج : اوسونونه ] جادو ، کوډې ، سحر ، مکر فرېب۔
**ـــــ پر بوتل** :-( اف ) اص۔(۱) د چا د مکر فرېب یا زور له کبله تابعدار کېدل (۲) د څهٔ کار یا حادثې نه وړاندې په چا د هغې اشوېښې کېدل یا علامې ظاهرېدل
**ـــــ پر لوېدل** :-( اف ) اص۔د چا د مکر ، فرېب ، یا زور له کبله تابعدار کېدل۔
**اوسون خطا** :-( اوسون + خَ + طا ) [ اف : پ (قاموس) اس ص ] هغه وړے چې ډوډۍ په بیړه او تلوار خوري ، وږ لُوهے۔
**اوسونه** :-( او + سَ + و + نَه ) [ پ ، حمص ] د چا مېشتهٔ کونه ، د چا په یو ځاے کښې دېره کونه یا ساتنه۔
**اوسُونکے** :-( او + سَ + وُوْ + نْ + کَے ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: اوسوونکي] مېشتهٔ کوونکے ،پالونکے ،دېره کوونکے ،ساتونکے۔
**اوسۍ** :-(اُو+سۍ ) [ پ،اس ، مؤ ] هوسۍ ،لکه شوې، نخچیره ،سرڅه
**اوسیچې** :-( اُو + سې + چې ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج : اوسېچې ] د اوسۍ شنګرې ، د اوسۍ سپشتې ، د اوسۍ ببلۍ ، ګیتۍ۔
**اوسېدل** :-( او + سې + دَ + لْ ) [ پ ، مص ، لا ] ووسېدل ، پنډېدل ، دېره کېدل ، استېدل ، اېسېدل ، استوږن کېدل ،
**پر اوسېدل** :-( اف ) اص۔د چا په کور دېره کېدل یا پنډېدل۔
**د چا سایه کښې اوسېدل** :-( اف ) اص ۔ د چا په سیوه اوسېدل ، د چا همسایه کېدل۔
**اوسېدلے** :-( او + سې + دَ + لَے ) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : اوسېدلي] ووسېدلے ، مېشتهٔ شوے ، دېره شوے ، استوږن شوے۔
**اوسېدن** :-( او + سې + دَ + نْ ) [ پ ، مص لا] و ـــ اوسېدل۔
**اوسېدنګ** :-( او + سې + دَ + نْ + ګ ) [ اف : پ (قاموس ) حمص ] اوسېدونه ووسېدونه ، دېره کېدنه ، مېشتهٔ کېدنه ، استوږن کېدنه۔
**اوسېدنه** :-( او + سې + دَ + نَه ) [ پ ، حمص ] و ـــ اوسېدنګ
**اوسېدونکے** :-( او + سې + دُو + نْ + کَے ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اوسېدونکي ] ووسېدونکے ، مېشتهٔ کېدونکے ، دېره کېدونکے ، استوږن کېدونکے ،
**اوسېدهٔ** :-( او + سې + دَهٔ ) [ پ ، حمص ] و ـــ اوسېدنګ
**اوسېلل** :-( او + سې + لَ+ لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت] اسوېلي کول ، سېلوي کول۔
**سارهٔ او سېلل** :-( اف ) اص۔اسوېلي کول،سېلوي کول،سړه ساه ویستل۔
**اوسېلنه** :-( او+ سې + ل+ نَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] سړه ساه ایستنه ، اسوېلي کونه۔
**اوسېلُونکے** :-( او + سې + لُو + ن + کَے ) [ اف : پ (قاموس ) اس فا ع،مذ ،وا ،ج: اوسېلونکي] اسوېلي کوونکے ،سړه ساه ایستونکے
**اوسېلې** :-( او + سې + لې ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : اوسېلي ] اسوېلے ، سېلوے ، سړه ساه۔
**ـــــ ایستل یا کښل** :-( اف ) اص۔اسوېلي کول ، سړه ساه ایستل ، اوسېلے کول
**ـــــ کول** :-( اف ) اص۔و ـــ اوسېلے ایستل۔
**اُوش** :-( اُو + ش ) [اف : پ (قاموس) کلمه ] (۱) د افسوس کلمه (۲) (ب + خ ،ګن ) اوښ ، ایش ،
**اوش** :-( او + ش ) [ اف : پ (قاموس ) کلمه ] د خر اودرولو دپاره دا کلمه استعمالېږي۔هش ، اش ، آش ، اوبش۔
**اُوشاره** :-( اُوْ + شا + رَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] یو قسم ملخ اوښکۍ ، اوښاره۔
**اُوش کش کش** :-( اُو+ ش + کَ + شْ + کَ + شْ ) [ اف: پ (قاموس) صیغه امر ] سپے په چا پسې کول یا تو کول ، سپے سُو کول ، سپے کشکارل ، سپے اچیش کول۔
**اُوشنل** :-( اُوْ + ش + ن + ل ) [ اف: پ (قاموس) مص مت ] د وړۍ نه جوړ څیز سپړدل او سر دوباره په نتداب یا ډینډت وهل ، په ډانډت وهل۔
**اُوشنلے** :-( اُو + ش + ن + لے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : اوشنلي ] وړین رخت ، سپړدلے شوے او بیا په نتداپ ، ډانډېچ ، ډینډت یا ډینډېپ وهلے۔
**اُوشنُونکے** :-( اُوْ + ش + نُوْ + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس فا ع، مذ ، وا ، ج : اوشنونکي ] وړین رخت ، تارتار کوونکے او په ډینډت وهونکے ، ډینډت۔
**اُوشنُوني** :-( اُو + شْ + نُوْ + ني )[ اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ ، ج ] وړین څیز چې تار تار شوے او په ډنډت وهلے شوے وي۔
**اوشے** :-( او + شے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] یو قسم بوټے چې ځناور ئې خوري
**اوشبرونګ** :-( او + شې+رَ +وَ + نْ + ګْ ) [ پ (وز) اس، مذ ، وا ، ج : اوشبرونګون ] کوږ ، کاژبل ، شبروند ۔
**اُوښ** :-( اُو + خ یا اُو + ش ) [ اف : پ (قاموس) کلمه ج و ـــ اوش
**اُوښ** :-( اُو + خ یا اُو + ش ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوښان ، (مؤ ، وا: اوښه ، ج : اوښې ) ] اُوش ، ایش۔ یو ځناور چې د شګو په وطن کښې د بار برداری کار ترې اخستے شي۔

ـــــ **په بډه کول** :-(اص) (۱) څرګند عیب یا ښکاره خبره د پټولو کوښښ کول (۲) د ناشوني کار کولوکوښښ کول (۳) د خپل حق نه زیات اخستل (۴) ډېر لوړے ناروا کول.

ـــــ **په بډه کېدل** :-(اص) (۱) څرګند عیب یا ښکاره خبره د پټېدو کوښښ کېدل (۲) د ناشوني کار کېدو کوښښ کېدل (۳) د حق نه زیات اخستل کېدل (۴) ډېر ناروا کېدل.

ـــــ **په بډه وهل** :-(اص) وـــ اوښ په بډه کول.

ـــــ **ته پرتوګ جوړول** :-(اص) (۱) د ناشوني کار کولو کوښښ کول (۲) د څۀ عیب پټولو کوښښ کول (۳) څۀ خبرې ته چل ول جوړول (۴) د کم عقلتیا آخري حد.

ـــــ **غر ، پېل ، شپله وئیل** :-(اف) اص-لوئي ، غصه ناکې او بېهوده خبرې کول ، یو غر بل غر ویشتل ، ناشولتې ویل.

**دُاوښ پټنه** :-(اص) داسې دښمني چې د ختمېدو امکان نۀ لري.

**دُاوښ پل جوړول** :-(اص) پړه منل ، شکست منل ، لرې منل

**د اُوښ په شا سپو خوړل** :-(اص) (۱) په ناخبرۍ کښې یا بې ګناه چاته درد رسېدل (۲) د امن په ځاے کښې نقصان رسېدل (۳) بې طمعې زیانمن کېدل (۴) ډېر شرمېدل ، زیات بې عزته کېدل

**دُاوښ په شان په دواړو ژامو شخوند وهل** :-(اص) ډېر حرص کول ، هر څۀ رانغړل ، په هر څۀ خېټه اچول ، په ټولو لاس راتاوول ، میم زرما ټول زما.

**دُاوښ په غاړه کېدل** :-(اص) (۱) د یو څیز ډېر کمیاب کېدل ، د یو څیز موندنه ګرانېدل.(۲) یو کار ډېر ځنډول.

**د اُوښ په لکۍ سپرېدل** :-(اف) اص (۱) ډېره بې حیائي کول ، (۲)جنګیالۍ کېدل.

**دُاوښ کینه** :-(اص) وـــ د اوښ پټنه .

**اُوښاره** :-(اُو + خا + رَه یا اُو + شا + رَه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج : اوښارې] وـــ اوشاره.

**اوښبني** :-(اُو + خْ + بَ + نِيْ یا اُو + ش + بَ + نِيْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ] (وـــ اوښبه توب)

**اُوښبون** :-(اُوښ + بُو + ن) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اوښ بانۀ] اوشبون ، هغه سړے چې اوښان ساتي ، ساروان ، اُوښبۀ

**اُوښبه** :-(اُوښ + بَه) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوښ بانۀ] وـ اُوښبون

**اُوښبه توب** :-(اُوښبه + تو + ب) [پ ، ص ج اوښبني ، د اوښ ساتلو کار ، ساروانې-اوښبه والے.

**اُوښبه والے** :-(اُوښبه + وا + لَے) [پ ، ص] وـــ اُوښبه توب.

**اَوښتل** :-(اَ + وَ + خْ + تَ + لْ یا اَ + وَ + شْ + تَ + لْ) [اپ ، مص ، لا] وـــ آوښتل.

**اَوښتنګ** :-(اَ + وَ + خْ + تَ + نْ + ګ یا اَ + وَ + ش + تَ + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱) اوښتنه ، اپوټه کېدنه ، اوړېدنه ، اړېدنه ، په بل مخ کېدنه ، نسکورېدنه ، (۲) څۀ اندام بې ځایه کېدنه ، (۳) څۀ عادت پرېښودنه.

**اَوښتنه** :-(اَ + وَ + خْ + تَ + نه یا اَ + وَ + ش + تَ + نَه) [پ ، حمص] (وـــ اوښتنګ)

**اَوښتُونکے** :-(اَ + وَ + خْ + تُو + نْ + کَے یا اَ + وَ + شْ + تُوْ + نْ + کَے) [اپ فا ، ع ، مذ ، وا ، ج : اوښتُونکي] اوړېدونکے ، ګرځېدونکے ، نسکورېدونکے ، پړمخ کېدونکے ، اپوټه کېدونکے ، اړېدونکے

**اَوښته** :-(اَ + وَ + خْ + تَه یا اَ +وَ +شْ + تَه) [اف :پ (قاموس) حمص] (۱) ګردش ، چکر (۲) (سو) د چا د پټي یا د پُولې څۀ حصه د بل په برخه کښې راتلنه.

**اَوښتي** :-(اَ + وَ + خْ + تي یا اَ + وَ + شْ +تَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : اوښتي] لُغ: اوړېدلے،پړ مخې ،نسکور شوے ، اپوټه شوے ، تل شوے ، اص :

ګُمراه ، مرتد ، بې دینه ، بې لارې.

**اوښ غولانځه** :-(اُوښ + غُوْ + لا + نْ + دْزَ ه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] یو قسم بوټے چې د غنمو په پټي کښې پیدا کېږي او شین ګل ئې وي -شین ګلے.

**اوښ غویئے** :-(اُوښ + غو + یئے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اُوښ غویي] یو مشهور څناور چې زرافه ورته وائي.

**اُوښکنې** :-(اُوښ + کَ + نَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو بوټے ، کله خار.

**اُوښکه** :-(او + خْ + کَه + یا او + شْ + که) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اوښکې] اوشکه ، اوښه ، اېشکه

**اوښکې بیول** :-(اص) ژړل ، اوښکې څڅول ، اوښکې توېول.

**اوښکې توېول** :-(اص) وـــ اوښکې بیول.

**اوښکې وچول** :-(اص) څوک راضي کول ، چاته تسلي ورکول ، چا ته په تکلیف کښې څۀ قدر ارام رسول.

**اوښکې وچېدل** :-(اص) (۱) راضي کېدل ، ارام رسېدل ، تسلي کېدل (۲) دومره ژړل چې په سترګو کښې نم اوچ شي.

**اوښکې کول** :-(اص) سترګو کښې اوښکې راتلل ، د بیمارۍ له کبله په سترګو کښې اوښکې راتلل.

**اوښکې وینې** :-(اص) زیاتې اوښکې ، زیاته ژړا ، ډېر غم ، دومره ژړا چې اوښکې اوچې شي.

**اوښکې** :-(اُوْ + خْ + کَے یا اُوْ + شْ + کَے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ، وا ، ج : اوښکي] وښکے ، وشکے ، د خولې ګوټونه.

**اوښکۍ** :-(اُوښ + کۍ) [پ ، اس ، مؤ] وـــ اُوشاره.

**اوښکینے** :-(اُوښ + کي + نَے) [اف : پ (قاموس) اس، ص ، مذ، وا، ج : اوښکیني) هغه څوک چې د اوښ په شان کینه لري-بدنیته بدطینته ، تور نیته.

**اوښ مرغۀ** :-(اُوښ + مَ + رْ + غَۀ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ، وا ، ج : اوښ مرغان ، اوښ مرغي] شُتر مرغ.

**اوښ مرغے** :-(اُوښ + مَ + رْغَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: اوښ مرغي ج یو بوټے دے چې د قندهار په رېګستان کښې پېدا کېږي چې د لرګي نه ئې کوئله یا سکارۀ جوړېږي.

**اوښ ملغے** :-(اُوښ + مَ + لْ + غَے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ،وا ، ج: اُوښ ملغي ج وـــ اُوښ مرغے.

**اوښه** :-(او+خه +یا او+ شه) [پ ، اس ، مؤ، وا ، ج : اوښې] وـ اوښکه

**د اوښو باران** :-(اص) د اوښکو باران ،زیاتې اوښکې راتلل ، ډېرې اوښکې بیول، د اوښو ډنډ ، د اوښو سیند .

**داوښو ډنډ** :-(اص) وـــ د اوښو باران

**داوښو سیند** :-(اص) وـــ د اوښو باران

**اوښو کښې لاهو کېدل** :-(اص)ډېر زیات ژړېدل،په ورتو ورتو ژړېدل

**اوښې تلول** :-(اص) وـــ اوښکې بیول.

**اوښې څڅول** :-(اص) وـــ اوښکې بیول.

**اوښې رابهېدل** :-(اص) اوښې توئیدل.

**اوښې راډکېدل** :-(اص) سترګو کښې د اوښکو راتلل ، د اوښکو سترګو کښې غړېدل

**سرې اوښې** :-(اص) زیاتې اوښکې.

**اوښے** :-(او+خے) [اف،پ (قاموس) اس،مذ ، وا ، ج : اوښي] وـ اوښے

**اُوښے** :-(اُوْ + خَے یا اُو + شَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: اُوښي (۱) یو غرئیز بوټے چې د اوښ د زخم په کار راځي.(۲) (سو) اوښے.

**اوښېمه** :-(اُو + خې + مَه) [اف : پ (قاموس) ، اس ، مذ، وا ، ج: اوښېمې] هغه

اوبنه چې وار ئې راؤړے وي. ګرمه اوبنه ، غوېمه یا ورلې اوبنه ، اېمه یا سپمه اوبنه.

**اوصاف** :-( اَوْ + صا + فْ ) [ ع ، ص ، مذ ، ج ، وا : وصف ] صفتونه ، تعریفونه ، خوبۍ ، ستائنې ، هنرونه.

**اوضاع** :-( اَو + ضا + ع ) [ ع ، ص ، مذ ، ج : وا : وضع ] خویونه ، عادتونه ، حالتونه .

**اوغان** :-( اَو + غا + نْ ) [ پ (عا) فا : افغان ، اس ، مذ ، وا ، ج : اوغانان ( مؤ ، وا ، او غانه ، ج : اوغانې ) ] افغان ، پشتون

**اُوغز** :-( اُو + غَ + زْ ) [ اف : پ ( قاموس) اس ، مذ ، وا] اکوړ ، غوز ، کُروَټ ، اُغز

**اُوغم** :-( اُو + غَ + مْ ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] کبر ، لوئي ، بډائي ، فخر ، ویاړ

**په اُوغم کېدل** :-( اف ) اص. کبر کول ، لوئي کول ، بډائي کول ، فخر کول ، ویاړ کول.

**اُوغه** :-( اُوْ + غَه ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مؤ ، وا ، ج : اوغې ] د بنیادم د ګېډې یا خېټې لوے چینجے.

**اَوقات** :-( اَو + قا + تْ ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : وقت ] (۱) وختونه ، ساعتونه ، ګړۍ (۲) (ګن) پیسه،دولت،مال،متاع (۳) روزګار ، کار روزګار ، کسب ، دندا.

**اَوقاف** :-( اَو + قا+فْ ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : وقف ] د خدا ے تعالیٰ په نوم بخنبلے داسې څیزونه یا جائیدادونه چې د عامو خلقو په ښېګړه راځي. دا د چا خاص سړي ملکیت نۀ وي.

**اُوکر** :-( اُو + کَ + رْ ) [ پ (صوابي ) اس ، مذ] څاروي چې خوراک وخوري نو پاتې شوني څیز ته اُوکر وائیلے شي. مامبور ( سو) اولاَل ( ګن ).

**اوکر** :-( اَو+کَ+رْ ) [ پ ، اس ، مذ ] اکر ، د مخ اثار ، د څېرې علامې

**اوکر وراندل** :-( سو ) اص. جګړې ته تیارېدل ، بېرېدل ، جنګ ته جوړېدل ، د غصې یا لېونتوب په حالت کښې د سترګو ورانېدل

**اوکشه** :-( او + کْ + شَه ) [ پ ( ب ، خ ) اس ] تل ، همېشه ، هر وخت ، هر مالې ، هر مال. لکه : '' اوکشه مې مه تنګوه ''

**اوکوب** :-( اُو + کُو + ب ) [ اف : پ ( قاموس) ص ، مذ ] لوئي ، سترتوب ، وس ، واک ، طاقت.

**اُوکه** :-( اُو+کَه ) [ پ ( ب ، خ + ګن ) ] بېخي ، بالکل ، قطعاً ، هېڅ کله ، حتمي ، لکه : '' دا کار به اُوکه ونۀ کړم ''.

**اُوکه** :-( اُو+کَه ) [ پ ( مر) ع : حقه،اس،مذ ، وا ، ج : اُوکې ] چلم، حقه

**اوکه** :-( او + کَه ) [ پ ( ښو + ګن ) ص ] (۱) په تکلیف کښې (۲) ګران

**اَوکه** :-( اَوْ + کَه ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ] (۱) بېخي موړ ، بالکل سېر ، ډېر موړ ، (۲) کمزورے ، اوچ کلک

**اَوکې** :-( اَ+ وَ + کَے) [ اف : پ (قاموس ) ص ، مذ ] د زیات خوراک یا ستومانۍ له کبله کمزوري.

**ـــــ کول** :-( اف ) اص. (۱) زر زر ساه اخستل ، د ستومانۍ یا زیات خورۍ له کبله لنډه لنډه ساه اخستل. (۲) اُلټۍ یا بکۍ کول.

**اوکے** :-( اُو + کے ) [ اف : پ (قاموس) مذ ] هوکے ، د مور پلار د خپلې لور د ودرولو دپاره چاته هو یا او کول.

**اوګار** :-( اَوْ + ګا + ر ) [ پ ( خل ) ] (۱) اخته ، مصروف ، لګیا ، په کار بوخت ، (۲) په غم لړلے ، په غم کښې ګېر (۳) زخمي، افګار

**اوګارول** :-( او + ګا + رَ + وَ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] د چا طبیعت خړول یا خته کول ، څوک پرېشانه کول ، د چا تربتول ،

**په ځان پورې اوګارول** :-( اف ) اص : څوک په ځان کول ، پرېشانول ، څوک په خپل غم اخته کول.

**اوګاروو نکے** :-( اُوْ + ګا +رَ + وُو + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اوګاروونکي ] تنګوؤنکے ، کړوونکے ، پرېشان کوونکے ، تربتوونکے ، ځلبلاند کوونکے.

**اُوګاره** :-( اُو + ګا + ره ) [ اف : پ (قاموس ) ص ] پرېشانه ، ځلبلاند ، تربت ، تنګ ، لکه : '' زۀ په خپل کار پورې اوګاره یم ''

**اُوګارېدل** :-( اُوْ + ګا + رې + دَ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص ، لا ] تنګېدل ، تربتېدل ، پرېشانېدل ، ځلبلاند کېدل

**ارېدو نکے**:-( اُو + ګا + رې + دُو + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : اوګارېدونکي ] پرېشانېدونکے ، تنګېدونکے ، تربتېدونکے ، ځلبلاند کېدونکے.

**اوګاړي** :-( اُوْ + ګا + ړي ) [ پ ( ب ، خ ) اس ، مؤ ] قسط ، نېته ، اوګرائي ، اوګړائي . د تجارت د قرض وصولي ، لکه : ''نن بنۀ اوګاړي وشوه '' .

**اوګرائي** :-( اُوْ+ګ+را+یئ ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مؤ ] و ـــ اوګاړي

**اوګره** :-( اُو+ګ + رَه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اوګرې ] (۱) د غنمو ، جوارو ، اوربشو یا وریژو پوخ شوے نرم خوراک چې غوړي په کښې نۀ وي . د جوارو او شُملو نه جوړ شوے خوراک . د غریبۍ خوراک ، (۲) ( شن ) پېچ (۳) (سو) د سحر ناشته.

**ـــــ کول** :- لُغ : اوګره جوړول ، اوګره پخول ، اص : ډېر نرمول ، څۀ خوراک ورانول.

**ـــــ کېدل** :-لُغ : اوګره جوړېدل ، اص : څۀ پوخ کړے څیز خرابېدل،ډېر نرمېدل.

**ـــــ لړل** :- لُغ : اوګره کښې څمڅه یا لرګے وهل ، اص : (۱) د خوارۍ نېستۍ ګذاره کول ، نینا اتوب (۲) د خوراک ډېر څیزونه سره یو ځا ے ګډوډ کول (ګن) دل.

**توده اوګره څټل** :- لُغ : ګرمه اوګره خوړل ، اص : په بیړه او تُندۍ کښې یو کار کول

**سړه اوګره خوړل** :-(اص) یو کار په آرام او مزه کول ، په کار کولو کښې بیړه نۀ کول

**اوګره ټینګې** :-( اُوګره + ټي + نْ + ګې ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اُوګره ټینګي ] یو بوټے د ے چې د قوت باه یا قوت مردمي دپاره استعمالېږي چې ورته ګُلبخور هم وائي ، عاقر قرحا ، اکر کره.

**اوګړائي** :-( اُو + ګ + ړا + ئي ) [ پ ، اس ، مؤ ) و ـــ اوګرائي.

**اوګړې بوګړې** :-( او + ګ + ړې + بو + ګ + ړې ) [ پ ( ب ، خ ) ص] (۱) ګړ بړ ، فساد ، شور زوږ ، اړے ګړے (۲) نوي تازه ، بنۀ بد یوه بله.

**اوګۍ** :-( اُوْ + ګۍ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] (۱) یو خارداره ونه ازغیناکه ونه ، کنجه غرې (۲) (صوابي ) یو قسم وابنۀ چې د اوږې په شان پلے کوي

**اوګے بوټے** :-( اُو + ګَے ) بُو + ټَے ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ ] یو مشهور ځنګلي بوټے.

**اول** :-( ا + وَ + لْ ) [ پ ، ع ، اول ، ص ] (۱) الله اکبر ، ړومبے ، اولنے ، ړومبنے،په سر کښې ، په شروع کښې، په ابتداء کښې. (۲) بنۀ ، بهتر ، چوڼ ، اعلیٰ (۳) د خالي ورځ ، چڼ چڼ ، سنیچر ، د هفتې ورځ.

**اول اخر** :-( اَول + آ + خِ + ر ) [ ع، ص ] وړاندې روستو، په سر کښې او شا ته. لکه : '' که په اول آخر ذکر د مولیٰ وي. هغه په میان کښې ګناهونه به ئې خدا ے تعالیٰ وربخښینه'' . ( اخون قاسم)

**اول مخ** :-( ګن) اص. زلموټے ، ځوانۍ ته رسېدونکے ، شونډه شنه کېدونکے ، بورړے ، بورړنئے.

**له اول نه** :-(اص ) د شروع نه ، د ابتداء نه ، د مخکښې نه ، د سره.

**اُول** :-( اُوْ + لْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ] (۱) اَړم ، تُل ، د دروازې دپاره د اړم کولو لرګے (۲) قېد ( اص ) (۳) سوګند ،قسم،وعده (۴) ساده کم عقل ، ناپوهه ، بُدلے ، لکه : '' څۀ اُول د ے ''.

**تر اُول وتل** :-(اف) اص۔د قېد نه خلاصېدل۔

**اُولا** :-( اُوْ + لاَ ) [ اف : پ (قاموس) ع : ولي ، اس ] خپلوان ، دوستان، سرپرستان، اقرباء ، خپښان۔

**بې اولا کېدل** :-(اف) اص۔بې اسرې کېدل ، خپلو خپلوانو او رشته دارانو نه محرومېدل۔بې عزيز ولی۔لکه : "انور بې اُولاد ے"

**اَولاً** :-( اَ + وَ + لَنْ ) [ ع ، ص ] د اوله ، په اول ځاے يا موقع ، په شروع کښې ، په ابتدا کښې ، په رومبي سر کښې ، شروع شروع۔

**اَولاد** :-( اَوْ + لا + دْ ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ، وا: ولد ] بال بچ ، بال بچي الواد ، نسل، پوخ ، پخ۔

**اُولاد** :-( اُوْ + لا + د ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اولادونه ] د افغانستان د پښتنو د مخصوص رواج او قانون مطابق څوک د يو کلي نه بل کلي ته په اس يا په اوښ رسول۔

**اُولال** :-(اُوْ + لا + لْ ) [ پ (ګن) اس ، مذ ] و ـــ اُوکر

**اولته** :-(او + لْ + تَه ) [ پ (ب، خ) اس ، اش ] و ـــ اُورته۔

**اُولجه** :-( اُوْ + لْ + جَه ) [ پ ،ص ،مؤ ،وا ، ج : اولجې ] چُور ، لُوټ تالان ، ولجه ، مال غنيمت۔

**اوولس [اوۀ لس ]** :-( اُ + وَ + لَ + سْ ) [ پ ، اس ، عد ] اوۀ او لس ، اوۀ دپاسه لس درې کم شل

**اُولس** :-( اُوْ + لَ + سْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اولسونه يا اولسې ] ملت ، عام ، قام ، قامي خلق ، عوام ، تومن ، وګړے ، خلق

**درست اُولس** :-(اص) ټول خلق ، ګرده نړۍ۔

**قام اُولس** :-(اص) قام قبيله،تومن،خپل خپلوان،عزيزان ، کلے اولس

**کلے اُولس** :-(اسو) اص۔ (و ـــ قام اولس)

**اُولس ګلوي** :-(اُولس + ګَ + لْ + وِيْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا] اولس واله ، کلي ګيري ، کلے کلوېغي ، وطن داري ، عزيز ولي ، غم ښادي ، کلي کلولي۔

**اولسم** :-( اُو + وْ + لَ + سَ + مْ ) [ پ ، اس ، عد ، مذ ، (مؤ ، وا: اُولسمه، ج : اولسمې) ] اوۀ دپاسه لسم ، درې کم شلم۔ولسم۔

**اُولس واله** :-(اُولس + وا + لَه) [اف: پ (قاموس) اس ص ، مؤ ] (و ـــ اولس ګلوي)

**اُولسي** :-( اُو + لَ + سِيْ ) [ پ ، ص ] قامي ، ملي ، عوامي ، د اولس سره تعلق لرونکے

**اُولکه** :-(اُوْ + لْ + که ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اولکې] مزکه ، وطن ، خاوره۔

**اُولکې پسې غوښتل** :-( اف ) مح ۔ د څيز په تلاش کښې ملکونه لټول ، په څۀ پسې لړې لړې تلل۔

**اُولګ** :-(او + لَ + ګْ ) [ پ (ګن) اس ، مذ ] مؤود ، مزد ، مز ، د زميندار له طرفه کسب ګرو ته په فصلانه کښې برخه ، اوړے، فصلانه۔

**اُولګې** :-( اُوْ + لْ + ګې ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] ګندکه ، وسه خر،يوه مشهوره لوبه چې په دريو ببړو ،شپشتو يا اډوکو کولے شي۔

**اُولل** :-(او + لَ + لْ ) [ پ (وز) مص مت ] ولل ، وينځل

**اُولمه** :-( اُوْ + لْ + مَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] دا ټکے د ويړه سره يو ځاے وئيلے شي۔لکه ويړه اولمه۔(۱) د وريځې نه پس رڼا (۲) سپرلے۔

**ويړه اُولمه کېدل** :-(اف) اص۔(۱) اسمان شين کېدل ، د بارانونو موسم تېرېدل (۲) سپرلے کېدل۔

**اَولنے** :-( اَ + وَ + لَ + نَے ) [ پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : اولني ] رومبے ، اوړمبے ، اوړمبے ، مخکنے ، په اول سر کښې۔

**ـــ خلک** :-(اص) رومبي خلک ، پخواني خلک ، د تېرې زمانې خلک

**ـــ زمانه** :-(اص) پخوانۍ زمانه ، تېره زمانه ، پخوانے وخت ، تېر وخت ، اولنے وخت اولنۍ ورځې۔

**ـــ وخت** :-(اص) (و ـــ اولنۍ زمانه)

**ـــ ورځې** :-(اص) (و ـــ اولنۍ زمانه)

**اولو** :-( او + لو ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ] د ګوړې شيره ، کبوړے، کک ، ګروړے۔

**اولو الامر** :-(او + لُو + لْ + اَ + مْ + رْ) [ ع ، ص ، مذ ] حاکم ، د حکم او اختيار خاوند

**اولوالعزم** :-(او + لُوْ + لْ + عَ + زَ + مْ ) [ ع ، ص ، مذ ] لُغ : د پخې او محکمې ارادې خاوند ، اص : د ښې مرتبې خاوندان ، اوچت ، لوے ، کلک سړے۔

**اولوس** :-( او + لَ + وَ +سْ ) [ پ (عا) اس ،ص ،مذ ] لالچي ، حرصناک ، طمع کوونکے ،

**اولول** :-( اُوْ + لُوْ + لْ ) [ اف : پ ( قاموس ) ص ، مذ ] د خرابۍ اثر ، د خرابۍ نخښې۔

**ـــ کول** :-(اف) اص۔خراب اثر کول ، بد اثر کول۔

**اولوې** :-( او + لَ + وَې ) [ پ ، ص ، مذ ] الوې ، سخت ، سوځېدلے کباب شوے، الوېيلے ، سوے لوے ، لوے سوے۔

**اُوله** :-(اُوْ + لَه ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ ] (۱) ليرې ،د ګډو د بچو رمه ، د ګډو نه د بېل کړې شوؤ بچو رمه ۔(۲) د څۀ وخت دپاره صلح يعني تيږه يا کاڼے۔

**اوله** :-(اَ+وَ+لَه ) [ پ،ص،مؤ،وا،ج : اولې ] رومبۍ ، اولنۍ ، مخکنۍ

**اُولې** :-( اُوْ + لَ + يې ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ] شور ژوړ ، نارې سورې ، په يو مخ شور۔

**ـــ په ګډېدل** :-( اف ) اص ۔ شور غوغا کول ، په يو مخ چغې نارې وهل ، سورې لوې چغې ويستل۔

**اَولے** :-(اَو + لَے ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ (مؤ : اولۍ) ] بدخويه هغه څوک چې په ګذاره کښې ښۀ نۀ وي۔بې ګذرانه۔

**اولياء** :-(اَو + ل + ياء ) [ ع ، ص ، مذ ، ج وا: ولي ] لُغ : دوستان ، ملګري ، اص : بزرګان ، وليان ، نېک او پاک خلق۔

**داولياء نظر** :- لُغ : د وليانو کتنه۔اص : د وليانو دعا او توجه چې د بنيادم ژوند پرې ښۀ کېږي۔رنګ کېدل۔

**اولين** :-(اَ + وّ + لِيْ + نْ ) [ ع، ص ، مذ] و ـــ اولنے۔

**اولينے** :-(اَ+وَ+لِي +نَے ) [ پ (وز) ص ، مذ ، وا ، ج : اولنې ] و ـــ اولنے

**اُوم** :-( اُ + وَ + مْ ) [ پ ، اس ، عد ، مذ ، (مؤ، وا: اومه ) ] په ترتيب کښې د شپږم نه پس ، درې کم لس۔

**اُوم** :-(اُو + مْ ) [ پ ، ص ، مذ (م،، وا: اومه ، ج : اُومې) ] (۱) کچه نيم پخته ، چې پوخ نۀ وي (۲) ناتجربه کار ، ناپوهه ، (۳) کچه عُمر هلک ، تنکے هلک ، اول مخ ، کچه خولۀ ، اومه خولۀ ، سپينه خولۀ۔

**اُومارګه** :-( اُوْ+ما+رْ+ ګَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] د ماشومانو سخا دانې ، اُومبارکې۔

**اُومال** :-(اُو + ما + لْ ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اُومالان] د اوبو د بند چوکيدار۔

**اُومالې کول** :-(اف) اص۔(۱) د اوبو د بند څوکيدارې کول ، (۲) د څۀ څيز منډه يا پل اخستل يا وهل ، څۀ څيز پسې تلل۔

**اُومان** :-(اُوْ + ما + ن ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] يو قسم بوټے دے چې د شُملو غړکه په هغۀ رنګولے شي۔

**اُومبارکې** :-( اُوْ + م +با+رْ + کِيْ ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا] مبارکي ،

مباركباد ، مرغ شكے

**ـــــ وركول** :-(اص) مباركي يا مرغ شكې وركول.

**ـــــ لېږل** :-(اص) مباركي يا مرغ شكې استول.

**اُومباركي** :-(اُو + مْ + با + رْ + كِيْ) [پ (گن) اس ، مؤ ، وا] اومباركې ، شېبره تبه، ميعادي تبه ، د سترې يا ټائيفاډ دانې

**ـــــ راختل** :-(گن) اص. د شېبرې ، سترې تبې يا ټائيفاډ دانې د چا په بدن راڅرگندېدل ، اومباركې راختل.

**اُومباركے** :-(اُو+مْ+با+رْ+كے) [پ (ب ،خ) اس ، مذ ، ج] و. اومباركي

**ـــــ راختل** :-(ب ، خ) اص.و ـــ اومباركي راختل.

**اُوم تار** :-(اوم + تا +ر) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : اُومهٔ تارونه] (۱) كچه تار ، زر شلېدونكے تار ، يسترے تار، يوستوے تار (۲) چل ول.

**په اومهٔ تار تړل** :-(اف) اص. (۱) په كچه تار تړ ل ، (۲) څوک په طمعه او امېد كول

**اُوم توب** :-(اُوم + تو + ب) [پ ، ص] (۱) اُومتيا ، كچه والے ، اُوم والے (۲) كم عقل توب ، خام ، ناتجربه كار.

**اُومتيا** :-(اُوم + تَ + يا) [پ ، ص) (و ـــ اُوم توب)

**اَومدنے** :-(اَو + مْ + دْ + نَے) [پ (ب ، خ) اس ،مذ ،وا ، ج : اومدني] (و ـــ انودنے)

**اُومړے** :-(اُو + مَ + ړَے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : اومړي] يستوے ، كچه ، هغه تار چې پوخ نهٔ وي. يوستوے.

**په اُومړي سپېنسي تړل** :-(اص) (۱) په كچه يوستوي يا يستوي تار تړل (۲) په اُميد كول ، چاته طمع وركول.

**اُوم سوزلے [سوځولے]** :-(اُوم + س + و+ زَ + لے) [اف :پ (قاموس) ص ، مذ] اُوم سوے،نيم پوخ او سوے،خام سوز ، نيم سوے ، نيم سوخته

**اُوم غلن** :-(اُوم + غَ + لَ + نْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ (مؤ ، وا: اُوم غلنه ، ج : اُوم غلنې) ] نيم پخته ، مُغلن.

**ـــــ اچول** :-(اف) اص. (۱) بچے اچول ، د ميعاد نه وړاندې بچے پېدا كېدل ، زيان كېدل. (۲)بې ځايه خبره ، نامعقوله خبره كول

**اُومک** :-(اُو + مَ + کْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ (مؤ ، وا: اُومكه ج : اومكې) ] (و ـــ اُوم)

**اُومكه** :-(اُوْ + مَ + كَه) [اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ، وا ، ج : اُومكې] كچه مزكه

**اُومواله** :-(اُو + مْ + وا + لَه) [اف : پ (قاموس) ص] و ـــ اومتوب

**اُوم والے** :-(اُوم + وا +لَے) [پ ، ص ، مذ] و ـــ اوم توب

**اُومه** :-(اُ + وَ + مَه) [پ ، اس ، مذ ، مؤ ، وا] (۱) په اوم نمبر ، په شمار كښې د شپږو نه پس ، لكه : " نن اومه ورځ ده چې زهٔ درته انتظار كوم " (۲) د ناوې اومه ورځ ، جهېز (۳) په مړي پسې د اومې ورځې خېرات.

**اُومهٔ** :-(اُوْ + مهٔ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــ اُومان

**اُومهٔ** :-(اُو + مهٔ) [پ ، ص] (۱) كچه ، نيم پوخ ، (۲) (سو) اس : ډل مُو، ويلې كړې وازده.

**اُومه خولهٔ هلک** :-(اص) نابالغ هلک ، اول مخ هلک ، هغه هلک چې شونډه ئې نهٔ وي شنه شوې.

**اُوم هے** :-(اُوم + هے) [اف : پ (قاموس) اس صو] (۱) د اوښانو د شړلو آواز (۲) د كاكړو په گډا كښې د هم هے سره اُوم هے ويلې شي.

**اُومېښتې** :-(اُو + مې + ش + تَے يا اُو + مِيْ + خ + تې) [پ ، ص ، مذ ،وا ، ج : اومېښتي] د اوو مياشتو هلک.

**اُومېن** :-(اُو + مې + ن) [اف :پ (قاموس) اس ، مذ] اُومېند ، اُمېند امېد.

**ـــــ واره** :-(اف) اص. اُمېندواره ، اميدواره ، حامله ښځه.

**اُونت** :-(اُو + نْ + تْ) [اف :پ (قاموس) اس ، مذ] كتكتے ، د غوا گډ وغېره د ځناور معده ، لړے ، لړي كولمې.

**اُونړځ** :-(اُو + نْ + ړ + تْسْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] نيكهٔ ، چې د نمسي په اول ځل مخ گوري. او څهٔ وركوي.

**اونړل** :-(اَ + وَ +نْ + ړ + ل) [اف : پ (قاموس) مص مت] انړول ، چونړ كول ، يو ځاے كول ، جمع كول. [غله په ژرنده اوړهٔ كول]

**اونړلے** :-(اَ + وَ + نْ + ړْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ،وا ، ج : اونړلي] انړولے ، چونړ كړے شوے ، جمع كړے شوے ، يو ځاے كړے شوے.

**اونړونكے** :-(اَ + وَ + نْ + ړُو + نْ + كَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع مذ ، وا ، ج : اونړونكي] انړوونكے ، يو ځاے كوونكے ، جمع كوونكے.

**اُونړے** :-(اُو + نْ + ړَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اونړي] اُوړنے ، هغه ټوكے چې ماشوم په كښې نغاړي اوړنے.

**اُونړۍ** :-(اُو + نْ + ړۍ) [پ (سو) اس ، مؤ ، ج] د ننكو يا ننيو يو قسم د كم تعدا ننكۍ ، لاكړه پاكړه.

**اُونګ** :-(اَ + وَ + نْ + گ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اونگونه] د اوسپنې بغرۍ ، هاون ، هاوند ، لنگرۍ، چټُو.

**اُونګي** :-(اُوْ + نْ + گي) [پ (ظفر) اس ، مؤ] اوربمۍ ، سپوږمۍ ، مياشت.

**اُونګے** :-(اُو+ نْ + گَئے) [پ (ب ، خ) اس مو] اينگاټ (وز) رينگے (ا ، خ) رينگا (گن) سينگاره ، (سو) انگولا.

**اُون لغړ** :-(اُو + نْ + لَ + غَ + ړْ) [پ (ظفر) اس ، ص ، مذ ، (مؤ : اون لغړه) ] لوڅ لغړه ، لېڅ لغړ ، بالكل بربنډ. گوته لكۍ.

**اُونول** :-(اُوْ + نَ + وَلْ) [پ (ظفر) مص مت] بربنډول ، د چا نه جامې ايستل ، تير توكه كول ، تش توكه كول ، د پوما توت ترې جوړول ، د مېرې غز ترې جوړول.

**اُونۍ** :-(اُ + وَ + نۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هفته ، اپته

**اولے** :-(او + لے) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] فضول او ډېرې خبرې كوونكے ، كړتو ، ډېر وئيدونكے ، بكواسي.

**اُوو** :-(اُ + وو) [پ ، اس ، مذ] اُوه. لكه : " اوو سيندونه پورې خپله برخه وه راوپرې " (متل)

**اوو** :-(اَ + وو) [پ (وز) اس] اوا ، باد ، بود ، هوا.

**ـــــ وركول** :-(وز) مح. (۱) څهٔ قصه په مبالغې سره بيانول ، څهٔ قصه په غرور سره بيانول (۲) د چا تعريف كول ، خوشامندې كول.

**ـــــ راتلل** :-(وز) مح. زړهٔ تازه كېدل ، زړهٔ خوشحالېدل.

**په اوو كښې كېدل** :-(وز) مح. په اوا كښې كېدل ، مغرورېدل ، په غرور كښې كېدل

**په اوو كښې گرځېدل [گرځېدل]** :-(وز) مح. په اوا كښې گرځېدل ، مغروره كېدل، مغرورېدل، مغروره گرځېدل. سر هوا كېدل.

**اوور كول** :-(شن) اص. اب وركول ،اوسپنې ته اوبهٔ وركول ، پاڼ وركول.

**اَووره** :-(ا+ وو + رَه) [پ (وز) ص ، مؤ ، وا ، ج : اوورې] فائده ، نفع ، لكه : "په دې كښې مې اووره نشته ".

**ـــــ خوړل** :-(وز) اص. فائده خوړل، نفع خوړل ، گټه لرل.

**اووړ** :-(اَ + وو + ړْ) [پ (وز) اس ، مذ] د اړ يا هاړ مياشت او وڼ (وز) د يوې مياشتې نوم چې د عيسوي سن د جون د مياشتې سره سمون خوري.

**اُووم** :-(اُو + وَ + مْ) [پ ، اس ، عد ، مذ ، (مؤ ،وا: اُوومه] د شپږم نه روستو. په اووم ځاے. لكه :" اووم د خداے تعالىٰ له عذابونو ويره د ايمان شرط دے " (اخوند قاسم)

**ـــــ اسمان** :- اص. اخري اسمان، هغه اسمان چې د ټولو نه پورته دے پورتنے اسمان ، لكه : " په اووم اسمان كښې اووهٔ لكه فرښتې دي " (اخوند قاسم)

**اووڼ** :-(اَ + وو + نْ + ړْ) [ پ (وز) اس ، مذ ] (و ـــ اووړ)

**اووۀ** :-(او + وۀ) [ پ ، اس عد ] اوۀ ، درې کم لس.

ـــــ **اتیا** :-(اس عد) اتیا او اووۀ ، اوۀ اتیا ، درې کم نوي.

ـــــ **اویا** :-(اس عد) اویا او اووۀ. اوۀ اویا ، درې کم اتیا

ـــــ **پنځوس** :-(اس عد) پنځوس او اووۀ. اوۀ پنځوس ، درې کم شپېتۀ.

ـــــ **څلوېښت** :-( اس عدد ) څلوېښت او اووۀ ، اوۀ څلوېښت ، درې کم پنځوس.

ـــــ **دېرش** :-(اس عد) دېرش او اووۀ. اوۀ دېرش ، درې کم څلوېښت

ـــــ **ستوري** :-(اص) د اسمان کټ اووۀ ستوري ، د بوډۍ کټ ، د اسمان ایوا.

ـــــ **شپېتۀ** :-(اس عد) شپېتۀ او اووۀ ، اوۀ شپېتۀ ، درې کم اویا.

ـــــ **لس** :-(اس عد) لس او اووۀ ، اوۀ لس ، درې کم شل.

**اووے** :-(اَو + وے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اووي] (۱) د چرګ د سر ځونډے یا پرپره (۲) د تندي وېښتۀ.

**اووېل** :-(اَو + وي + ل) [ پ (وز) ص] کم عقل ، بې وقوف ، ناپوهه. لکه : " هغه اووېل دے "

**اوۀ** :-(اُ + وَۀ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] هغه تڼاکه چې د ځناورو په پښه کښې پیدا کېږي. تڼوکه (وز) نونکۍ ، برېوکۍ ، خرخوتۍ (وز)

**اوه** :-(اَو + ہَ) [ اف : پ (قاموس) حرف ، مذا ] د غوایو د اودرولو دپاره دا کلمه ویلے شي. آ ، او ، اے ، یا ، کُو ، کې ، تم شه ، اودرېږه.

**اوه** :-(اَو + ۀ) [ پ ، د حسرت کلمه ) د ارمان او افسوس غږ.

**اُوه** :-(اُ+ وْه) [ پ ، عد ] اووه.

ـــــ **اتیایم** :-(اس عد ، مذ ، مؤ : اوه اتیایمه) چې په اتیا او اُوم عدد کښې راځي.

ـــــ **اسمانه** :-(اص) ټول اسمانونه ، اووۀ واړه اسمانونه ،

ـــــ **اویا** :-(اس عد) اووۀ دپاسه اویا ، درې کم اتیا.

ـــــ **اویایم** :-(اس ، عد ، مذ (مؤ : اوۀ اویایمه) چې په اووۀ اویا عدد کښې راشي.

ـــــ **پنځوسم** :- اس ، عد ، مذ ، (مؤ : اووۀ پنځوسمه ) چې په اووۀ او پنځوس عدد کښې راشي.

ـــــ **څلوېښتم** :- اس ، عد ، مذ (مؤ : اوۀ څلوېښتمه) چې په اووۀ او څلوېښت عدد کښې راشي.

ـــــ **دېرش** :- اس عد ، مذ (مؤ : اوۀ دېرشمه) چې په اووۀ او دېرش عدد کښې راځي.

ـــــ **ډزه** :- ص. اووۀ ډزونه ، اووۀ فېرونه یا پېرونه.

ـــــ **ډزې تماچه**:- اس ، ص. هغه تماچه چې اووۀ کارتوسونه پکښې ځائېږي

ـــــ **ډزے ټوپک** :- اس ص ، هغه ټوپک چې اووۀ کارتوسونه پکښې ځائېږي.

ـــــ **شپېتم** :- اس عد ، مذ (مؤ : اوۀ شپېتمه) چې په اووۀ دپاسه شپېتۀ عدد کښې راځي.

ـــــ **غلۀ** :-(اف) لُغ : اووۀ غلونه ، اص : اووۀ ستوري.

**اوۀ قدمه ووخستل** :-(وز) اص. د وادۀ یو رسم.

ـــــ **کشوره** :- اس عد. لُغ : اووۀ ملکونه ، عرب ، ایران ، توران ، هند ، چین ، مصر او یونان. اص : ټوله دنیا.

**اوۀ لاونه دوري** :-(اص) (ب ، خ) لوے دارو ، د طاقت دپاره اووۀ قسمه څیزونه چې سره ګډ شي. پروړه (سو) سوچه دارو.

ـــــ **نوي** :- اس عد ، نوي او اووۀ ، اوۀ نوي ، درې کم سل.

ـــــ **نوي یم** :- اس ، عد ، مذ ، (مؤ : اوۀ نوي یمه) چې اووۀ دپاسه نوي عدد کښې راځي.

ـــــ **وویشت** :- اس عد ، شل او اووۀ ، اوۀ ویشت ، درې کم دېرش

ـــــ **ویشتم** :- اس ، عد ، مذ ، (مؤ : اوۀ ویشتمه) چې اوۀ دپاسه شل عدد

باندې راځي.

**اوهام** :-(اَو+ها+مْ) [ ع ، اس ، ج ، وا : وهم ] وهمونه ، خواب او خیال

**اوهو** :-(اَو+هو) [ پ ، د ، حیراني او تعجب کلمه ] دا کلمه د حېرانګۍ په وخت وئیلے کېږي.

**اوهوري** :-(اَ + هو + ري) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اهوري] و ـــ اورې

**اوي** :-(اَ + وَیئ) [ پ ، فا : ابي ، اس ، ص ، مؤ ] (۱) هغه زمکه چې په اوبو پنه کېږي. اوئ زمکه ، تندویه زمکه (۲) (اکوره) باولۍ یا باوړئ. هغه کوېئ چې په پاوړو ورکوزېږي او اوبۀ ترې راډکوي.

**اوی** :-(اَ + وَی) [ پ (ګن) اس ، مؤ ] پجه ، هغه ځاے چې کوم کښې کُلال لوښي پخوي.

**اوي** :- جل وهلے ، چې تنده ئې نۀ مري. لکه وجود ې اوي دے.

**اوي** :-(اَ + وي + [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] یو قسم قندهاري انګور چې ډېر نرم وي او مویز ترې نه جوړېږي.

**اُوي** :-(اُوْ + ي) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اُویونه ] قول ، لوظ ، وعده ، قرارداد

ـــــ **تړل** :-(اف) اص. لوظ اقرار کول ، وعده کول.

ـــــ **کول** :-(اف) اص. و ـــ اوي تړل.

**اوې** :-(او + ې) [ پ ، اس ، ج : وا : اویه ] اګۍ ، ها

ـــــ **جنګول** :-(اص) د پښتنو په ځینو قبیلو کښې یوه لوبه چې اکثر د اخترونو او نورو مېلو په موقع کېږي. یوه اګۍ د بلې سره وهي د چا اګۍ چې ماته شي هغه بائیلي. لکه : " صبا اختر دے اوړکي اوې جنګوینه "

**اویا** :-(اَ + وْ + یا) [ پ ، اس ، عد ] لس دپاسه شپېتۀ. درې نیم شلې

**اویایم** :-(اَ + وْ + یا + يَ + م) [ پ ، اس ، عد ، مذ ، (مؤ : اویایمه ] چې لس دپاسه شپېتۀ عدد کښې راځي.

**اوېتون** :-(اَ+وي + تُو + نْ) [ پ (وز) ص ] اول عمر ته رسېدلے ځوان

**اوېجه** :-(اَ + وي + جه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] زمکه ، ملک اولکه.

**د خداے پر اوېجه نۀ پرېښول** :-(ا ف) مح. لُغ : د خداے تعالیٰ په زمکه نۀ پرېښودل. اص : څوک ډېر تنګول ، څوک په مخه اخستل ، چا سره ډېره دښمني او کینه کول.

**اوېر** :-(اَ + وي + ر) [ اف : پ (قاموس) مذ ] ګرمي.

**اوېزان** :-(اَ + وي + زا + نْ) [ پ ، ص ، مذ ، (مؤ : وا : اوېزانه ، ج : اوېزانې ] اوېزاند ، الوېزاند ، ځوړند ، راللبدلے (وز)

**اوبزاند** :-(اَ + وي +زا+ نْ + د) [ پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا : اوېزانده ، ج : اوېزاندې ) ] (۱) و - اوېزاندې (۲) په انتظا رکښې (۳) په پانسې کښې ځوړند (۴) پلاند اسماند ، عضو تناسل.

**اوېزاندول** :-(اَ + وي + زا+ ن + دَ + وَ + لْ) [ پ ، مص مت ] (۱) اوېزانول ، ځوړندول ، راللو ، لکول ، (۲) اتاله کول ، ځنډول ، ډیل ورکول ،

**اوېزاندېدل** :-(اَ+وي+زا+نْ +دي+دَ+ل) [ پ ، مص لا ] (۱) ځوړندېدل ، اوېزانېدل ، لکېدل ، راللبدل (۲) اتاله کېدل ، ځنډېدل

**اوېل** :-(اَو+يَ+لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] اودل ، وودل ، اوبدل

**اوېلے** :-(اَو + يَ + لے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : اوېلي] اودلے ، اوبدلے ، وودلے.

**اوېنګ** :-(اَو + يَ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص ، مذ ] اودن ، وودن ، ودون

**اوېنه** :-(اَو+يْ + نه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] وینۀ ، اوني (ګن)

**اوېونکے** :-(اَو + یُو + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، فاع ، مذ ، وا ، ج : اوېونکي ] اودونکے ، اوبدونکے ، وودونکے

**اویه** :-(اَو + يۀ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــ اوېنګ

**اويه** :-(اَو + يه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : اويې] هويه ، ها ، اګئ ، هايه ، يويه ، انګئ.

**اويه** :-(اَو + يَ + ه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اويې] اګئ ، ها ، هويه ، وويه ، انګئ.

**اها** :-(اَ + ها) [پ ، د خوشحالئ کلمه] د خوشحالئ په موقع وئيلے شي. لکه: ''اها ، ها ها''

**اهاړ** :-(اَ+ ها + ړ) [پ ، هـ : اساړهـ ، اس ، مذ] د اړ مياشت ، د بکرمي کال دريمه مياشت ، اړ ، هاؤ اووؤ ، اهړ (سو)

**سُوراهاړ** :-(اص) سخته ګرمي ، سوُونکے نمر.

**اهاک** :-(اَ + ها + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] چُونه ، آهک

**اهانت** :-(ا + ها + نَ + تْ) [ع ، ص] سپکاوے ، بې عزتي ، هتک

**اها ها** :-(اَ + ها + ها) [پ ، د خوشحالئ کلمه] و ــــ اها

**اهتمام** :-(ا + هـ + ت + ما + مْ) [ع، اس ، مذ] انتظام ، بندوبست

**اهداد** :-(ا + هَ + دا + دْ) [پ (ظفر) اس ، مذ] سزا ، زوروونه ،

**اَهرام** :-(اَ + هْ + را + مْ) [ع ، اس ، مذ ، ج ـ وا : هرم] ميناروونه ، مناري ، د مصري اوچتې څوکې لرونکې ميناروونه.

**اَهمن** :-(اَ + هْ + رَ + مَ + نْ) [فا ، اس ، مذ ، وا] ځ د شر ديوتا.

**اَهړ** :-(اَ + هَ + ړْ) [پ (سو) اس ، مذ] و ــــ اهاړ

**اَهل** :-(اَ + هـ + ل) [ع ، ص] (۱) خاندان ، کورنئ ، کورمه ، خپلوان ، ال اولاد ، خاوند ښځه ، د يو ټبر غړي (۲) اوسېدونکے (۳) وړ ، قابل ، لائق ، اهليت لرونکے ،

ــــ **الله** :-(اص) خدائي خلق ، بزرګان ، درويشان ، فقيران ، په خدا ے تعالىٰ مئين ، خدا ے تعالىٰ ته نزدې ، د برخې خاوندان

ــــ **اَبصار** :-(اص) د نظر خاوندان ، پوهه ، وينې ، هوښياران

ــــ **اِسلام** :-(اص) مسلمانان ، د اسلام دين منونکي ،

ــــ **اِيمان** :-(اص) د ايمان خاوندان ، ايمان لرونکي ، مسلمانان ، د کلکې عقيدې مسلمانان،مؤمن مسلمانان، سوُچه مسلمانان

ــــ **بيت** :- لُغ : د کور خلق ، د خاندان خلق ، وارۀ زاګه. اص : د رسول پاک صلی اللہ عليه وسلم د خاندان خلق. لکه: ''په حضرت پسې نزد ې وي پسې د حضرت د اهل بيتو پسې فضل د ے د شپږو'' (اخوند قاسم)

ــــ **تشيع** :-(اص) د شيعه ګانو فرقه.

ــــ **خېر** :-(اص) امن پسند ، صُلح جو ، امن غوښتونکي ، خېر لټوونکي ، د خېر په تلاش کښې.

ــــ **دل** :-(اص) د نېک زړۀ خاوندان ، صاف زړي ، پوهه ، پاک زړي ، نېک نيته ، صاحبِ حال.

ــــ **دنيا** :-(اص) د دنيا خلق ، په دنيا مئين خلق. د دنيا په کاروبار کښې بوخت خلق ،

ــــ **ذوق** :-(اص) د ذوق خاوندان ، د علم د زده کړې شوق لرونکي

ــــ **رائې** :-(اص) (۱) د رائې ورکولو وړ يا جوګه ، اوښيار سړے ، (۲) مُنصف ، جج.

ــــ **زبان** :-(اص) (۱) د مورنئ ژبې ويونکے (۲) په ژبه پوهېدونکے د ژبې ماهر (۳) د ژبې نه واقف.

ــــ **زمان** :- لُغ : د زمانې خلق ، اص : مطلبي ، خودغرضه ، زمانه ساز ، ابن الوقت.

ــــ **سخن** :- لُغ : د ژبې خاوندان ، د ژبې ماهران ، اص : شاعران ، اديبان ، سخنور ، ليکوال.

ــــ **سُنّت** :-(اص) اهل سُنّته والجماعة ، د سُنّي مسلمانانو فرقه.

ــــ **شر** :-(اص) شېطان ، شرپسند ، نفاق پيدا کوونکے ،

ــــ **صواب**:-(اص) درست کار کوونکي ، د ښې رايې خاوندان ، ښۀ خلک.

ــــ **عقل** :-(اص) عقلمند ، هوښيار ، پوهه.

ــــ **علم** :-(اص) د علم خاوندان ، عالمان.

ــــ **عنقا** :-(اص) داسې خلک چې عنقا په شان موندل ئې ګران وي

ــــ **وعيال** :- لُغ : ښځه او بچي ، وارۀ زاګۀ. اص : خپل خپلوان ، عزيزان ، رشته داران ، خپله کورنئ يا کورمه ، بال بچ.

ــــ **قلم** :- لُغ. د قلم خاوندان ، ليکوال ، اص : (۱) منشي ، محرر ، (۲) حاکم ، افسر.

ــــ **کتاب** :- لُغ :د کتاب خاوندان،کتاب لرونکي اص : يهود او نصارىٰ.

ــــ **کېميا** :- اص. کيمياګر ، کيميا جوړوونکي ، د کيميا په چل پوهېدونکي.

ــــ **نا اَهل** :-(اص) قابل او نالائق خلق.

ــــ **نظر** :- لُغ : د سترګو خاوندان ، سترګه ور ، اهل بصيرت ، اص: د پېژندونکو سترګو خاوندان.

ــــ **نفاق** :-(اص) (۱) منافق ، دوکه باز ، فريبي ، شېطان (۲) بې ايمانه ، بې دينه.

ــــ **نو روز** :-(اص) د ايران د نوروز په مېله کښې چې خلقو خپلې ښې ښکلې رنګيزې او قيمتي جامې اچولې وي.

ــــ **وفا** :-(اص) وفاداران ، پت پالُونکي ، اهل ايمان.

ــــ **هنر** :-(اص) د هنر خاوندان ، هنرمند ـ کسب ګر

**اَهل کار** :-(اَهل + کا + رْ) [فا ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : اهل کاران ، (مؤ : وا ، اهل کاره ، ج : اهل کارې)] کارنده ، منشي ، د يوې ادارې غړے.

**اَهلي** :-(اَ+ هْ+ لِيْ) [پ ، ص] قابل ، پوهه ، ځيرک.

**اَهليه** :-(اَ+ هْ +ل+ يَه) [فا ، اس ، مؤ ، وا] ښځه ، ټبر ، کورواله ، ارتينه

**اَهم** :-(اَ + هَ + مَ) [ع ، ص] ډېر ضروري ، لازمي ، زيات ضروري

**اِهمال** :-(ا + هْ + ما + لْ) [ع ، ص ، مذ ، وا] (۱) غفلت ، سستي ، بې پروائي ، چشم پوشي (۲) تاخير ، ديري

**اَهميت** :-(اَ + هْ + م + يَ + تْ) [ع ، ص ، مذ] لازميت ، اهم والے ـ لکه: ''زۀ دې خبرې ته څۀ اهميت نۀ ورکوم''.

**اُهو** :-(اُ + هو) [پ ، کلمه] د افسوس په وخت دا کلمه وئيلے شي

**اُهو هو** :-(اُهو + هو) [پ ، کلمه] د زيات غم درد او مسرت په وخت داسې وئيلے شي.

**اَے** :-(اَ+ ے) [په (وز ، ب ، خ ، بنو) اس ، اش] دغه ، ايئ ، هئے ، دلته ، لکه: ''کتاب اَے دے''.

**اې** :-(اې) [پ (وز) کلمه) او ، هو ، هاؤ.

**اَئے** :-(اَ + ئے) [پ (مو) اس ، اش] هئے ، اَے ، اوے ، دغه.

ــــ **کول** :-(پ ، وز) اص : شړل ، لرې کول.

ــــ **توبه** :-(اص) هئے توبه ، د انکار کلمه ، د استغفار کلمه ،

**اِے** :-(ا + ے) [پ ، حرف ندا] (۱) د بللو يا اواز کولو کلمه ، يه ، او ، آ ، وۀ ، لکه: ''اِے سړيه! اِے هلکه!'' (۲) د افسوس کلمه

**اِې** :-(ا + ي) [اف : پ (قاموس) کلمه] د ماشومانو اصطلاح چې د بولو د راتلو په وخت ئې استعمالوي.

**اَيا** :-(اَ + يا) [فا ، کلمه ندا] او خيال کړه ، پام کوه ، فکر کوه.

**اَياز** :-(اَ + يا + زْ) [اس معر ، مذ ، وا] (۱) د محمود غزنوي يو زړۀ ته نزدې وفادار خادم. (۲) عام طور محبوب ته وئيلے شي. (۳) يو عام نوم.

**اَيازي** :-(اَ + يا + زي) [پ ، اس ص ، مذ] (۱) د اياز نه (۲) اص : وفادارئ ، ملګرتيا ، تابعداري

**ایاس** :-(ا + یا + س) [ ع ، اس ، مذ ، وا ] مایوسي ، نا اُمېدي.

**اَیاغ** :-(اَ+یا+غْ) [ فا ،اس،مذ ، وا ] کنډول ، پیاله ، ګلاس ، جام ،کونډۍ.

**اَیام** :-(اَ + یا + مْ) [ ع ، اس ، ج ، وا: یوم ] ورځې ، وختونه ، موسمونه ، حالتونه

**اَېب** :-(اَ + ي + بْ) [ پ (وز) ع : عېب ، ص، مذ ، وا: ج : اېبینه ] عېب ، نقص ، کمے

**اَېبره** :-( اي + بْ + رَه ) [ پ (وز) اس ، مؤ ] (۱) فصل ، (۲) د مزکې د محفوظ ساتلو او ښهٔ کولو دپاره چا ته د څهٔ وخت پورې یو څو اول فصلونه ورکول ، بوګرۍ.

**اَېبهٔ** :-(اَي + بهٔ) [ پ (وز ، بنو) اس ] اُوبهٔ.

**ـــــ اووشتل** :-(وز) لُغ : اوبهٔ اوړېدل.اص : (۱) غسل فرض کېدل (۲) ځوانۍ ته رسېدل ، اودس اوړېدل.

**ـــــ په تېرول** :-(وز) اص : کنګالول ، وينځل ، پرې وينځل ، په اوبو پاکول.

**ـــــ پېژول** :-( وز ) اص.اوبهٔ پوژ وهل ، اوبهٔ څنګاؤ کول ، اوبهٔ ترمکا کول.

**ـــــ وېر کول**:-(وز) اص . (۱) اوبول ، پنه کول ، خړوبول (۲) اوسپنې ته اب ورکول

**ـــــ يستل** :-( وز ) اص.(۱) بې عزته کول ، شرمول، (۲) د زخم تشول ، د زخم تناکه ماتول.(۳) عرق ایستل ، نچوړول.

**اَېبې ته اچول** :-( وز ) اص.(۱) اوبو ته ورتربل ، اوبو ته ورغوزارول په اوبو لاهو کول.(۲) بربادول ، نقصانول ، تاوانول.

**په اېبې شې سېیه کول** :-(بنو ) اص.(۱) د هلکانو یوه لوبه ، (۲) په اوبو کښې ساه کول ، په اوبو کښې غوپه وهل.په اوبو کښې ساه بندي.

**په اېبې ګډول** :-( مذ ) لُغ : په اوبو ورګډول.اص : خطا کول ، دوکه کول ، غولول.

**په اېبې لمبول**:-(وز) لُغ : په اوبو غسل ورکول یا لمبول ،اص : ډېر زیات بې عزته کول

**دابېې بغرۍ** :-(بنو) اص : د اوبو ګرداؤ ، ول ، ډب ، نهنګ ، ګرداب یا غولۍ

**دابېې ځېر** :-( بنو ) اص.پاتې شوې اوبهٔ ، هغه اوبهٔ چې د بند ترلو نه پس لړې لړې زمکې ته راځي.پارچاؤ.

**دابېې سر** :-(بنو) اص : د اوبو سر ، د نیز یا نُوز سره.د خوړ یا الګډې اولنۍ اوبهٔ.

**دابېې پستې** :-(بنو) اص : د اوبو اوچتې چپې ، د اوبو بټ یا غوړدانګې.

**ايت** :-(ايْ + تْ) [ پ (ب ، خ ) ص ] ويت

**اِېتبار** :-(اي + تْ + با + رْ) [ پ (عا) ع : اعتبار ، اس ، مذ ، وا ، ج: اېتبارونه ، اېتبورينه ] باور ، اتبار ، اعتبار ، وسا ، ايسو.

**اَېتراض** :-(اَي + تْ + را + ض) [ پ (عا) ع : اعتراض ، اس ، مذ ، وا ، ج : اېتراضونه ، اېتاروضينه ] اعتراض ، ټک.

**ايت کونتوب** :-(ايت + کُو + نْ + تو + ب) [ پ (ب ، خ ، حمص] ويت کونتوب ، مغرورتيا ، کونه وازي.سوټي سراپي.

**ايت کونے** :-(ايت + کو+نے ) [ پ (ب ، خ) اس ، ص ، مذ ،وا ، ج : ايت کوني ] ويت کونے،کونه واز ، اوائي ، مغرور ، سوټي سراپ

**اِيتکۍ** :-(ايْ + تَ + کَ + يْ) [ پ (ب،خ) اس ، ص ، مؤ ] ويتکۍ ، د طنز په ډول چالاکۍ جينۍ ته وائي.

**اَيته** :-(اَ يْ + تَه) [ اف : پ (قاموس ، اس ، ج ] جوشي انګور ، هغه انګور چې آب جوش ترې نه جوړېږي.

**اَيته چې** :-(اَيته [ چې) [ اف : پ (قاموس) کلمه ] حتٰی چې ، تر هغه چې ، تر دې چې ، لکه : '' ايته چې هغه راځي ''

**اِيجاب** :-(اِ + يْ + جا + بْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا] قبلول ، منظورول ، منل

**ايجاب قبول** :-(اص) وـــ اجاب قبول.

**اِيجاد** :-(اِ + يْ + جا + دْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : ايجادونه ] دريافت، نوے څيز جوړول ، وجود ته راتلل.

**ايجادول** :-(اِ + يْ + جا + دَ + وَ + لْ) [ پ ، مص ، مت ] ايجاد کول ، نوے څيز جوړل ، يافت کول.

**ايجادېدل** :-(ايْ + جا + دې + دَ + ل) [ پ ، مص لا] ايجاد کېدل ، نوے څيز جوړېدل ، يافت کېدل ،

**ايجاز** :-(ا+يْ+جا +زْ) [ ع ، اس ، ص ، مذ ] اختصار ، مختصر ، لنډ

**اِيجره** :-(اي + ج + رَه) [ پ (وز) اس ،مؤ ،وا ،ج : ايجرې] حجره اوجره ، چوک ، بېټک ، د مېلمنو د ناستې ځاے ،

**ايجري بېجري** :-(اي + ج + رِيْ + بې + جْ + رِيْ) [ پ (ب ، خ) اس ، ص ] غټ پټ ، ډډ بډ ، پرسېدلے ، اَدُو بــدو ، ډېــر خوړب ، لکه :'' هغه سړے څومره ايجري بېجري دے ''

**ايجړا** :-(ا+يْ+ج+ړا) [ پ ، هـ ، هېجړا ، اس ، وا ، ج : ايجړاګان] لُغ : نامرد ، نر ښځے ، نر ښځ ، نومړد ، مرده ذکر.اص : کمزورے ، سست ، ډارن ، بې غېرته.

**ايجړابلول** :-(اَايجړا + بَ + لُو + ل ) [ پ (وز) اس ج هغه ايجړا چې ګډا نڅا ، مخول او ټوقې ټقالې کوي ، ټقالي ايجړا ، مسخرا

**ايجړاګے** :-(اَيجړا + ګے ) [ پ ، اس ، تصغير ، وا ، ج : ايجړاګي ] وړوکے ، ايجړا ، کمکے ايجړا ، ورکوټے هجړا .

**ايجنټ** :-(اي + جَ + نْ + ټ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : ايجنټان ، ايجنټون ، (مؤ ، وا: ايجنټه ، ج : ايجنټې ] (۱) نائب (۲) آړتي

**ايجنده** :-(ايْ + جَ + نْ + دَه) [ اف : پ (قاموس) اس،مؤ، وا ، ج: ايجندې ] د جوارو اوچ وړے.

**ايجنډا** :-(ا + يْ + جَ + نْ + ډا ) [ انګ ، اس ، مؤ ، وا ، ج :ايجنډې ] لايحه عمل ، د څهٔ غونډې يا ميټنګ کېدو نه اول د بحث کولو دپاره موضوعات يا سرخطونه.

**ايجنسي** :-(اي + جَ + نْ + سي) [ انګ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : ايجنسيانې، ايجنسۍ ] (۱) ارت ، کميشن ، ايجنټي (۲) د پولټيکل د انتظام لاندې قبائلي علاقه.

**ايجوکېټډ** :-(اي + جُو + کې + ټ + ډ ) [ انګ ، اس ، ص ] تعليم يافته ، تربيت يافته ، چې ليک لوست ئې زده وي.

**ايجوکېشن** :-(اي + جُو + کې + شَ + نْ) [ انګ، اس ، مذ] تعليم . زده کړه پوهه.

**اَيجي ټېشن** :-(اَي + جي + ټې + شَ، نْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا] هنګامه ، ګړ بړ ، اړے ګړے ، فساد ، تحريک ، هله ګُله.

**اِيځي** :-(ايْ + دْز + يْ) [ اف : پ (قاموس) مؤ ] (۱) په هجو ويل ، په ټکو ويل ، په پيغې کول (سو) (۲) يوه خبره ښهٔ يادول.

**ايچ کاپر** :-(ايْ + چ + کا + پَ +ر ) [ پ ، اس ،مذ ، وا] (۱) ډوما کافر ، لنډهور ، لوے کافر ، (۲) ضدي ، جاهل مطلق.

**ايخ** :-(ا + يْ + خْ) [ اف : پ (قاموس کلمه ] (۱) د خوراک د څيز نه د کرکې او د نفرت کلمه.لکه : '' ايخ څهٔ سخا ام دے '' (۲) د اوبښ د کښېنولو ، بېتولو يا چوکولو په وخت وئيلے شي.

**ايخول** :-(ايْ + خَ + وَ + لْ) [ اف :پ (قاموس) مص ، مت ] د اوبښ کښېنول ، بېتول يا چو کول.

**ايخونګ** :-(ايْ + خَ + وَ + نْ + ګ ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] ايخونه د اوبښ کښېنونه ، بېتونه يا چو کونه

**ايخونه** :-(ايْ + خَ + وَ + نَه) [ پ ، حمص] وـــ ايخونګ

**اِیخوونکے** :-(اِيْ + خَ + وُو + نْ + کَے ) [ اف: پ (قاموس) اس ، فا ع مذ ، وا ، ج : ایخوونکي ] د اوښ کښېنوونکے ، بېتهوونکے یا چوکوونکے۔

**اِیخېدل** :-(اِيْ + خې + دَ+لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص ، لا ] د اوښ کښېناستل ، بېتهېدل یا چوکېدل۔

**اِیخېدنه** :-(اِيْ + خې + دَ + نه ) [ پ ، حمص ] د اوښ کښېناستنه ، بېتهېدنه یا چوکېدنه۔

**اِیداد** :-(ا + يْ + دا + د ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] زورنه ، ملامت کونه ، اهداد ، سزا۔

**اَیدک** :-(اَيِ + دَ +کْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] خیدک ، خرابے ، موره شوي پیے ، چې اوبۀ او پنیر ئې سره بېل بېل وي ، وراني پیے۔

**اِیدۀ** :-(ايْ + دۀ ) [ پ (وز) اس، مذ (مؤ ، وا: ایده ، ج: ایدې) ] اودۀ، خوبولے ، ویدۀ

**ـــــ کول** :-( وز ) اص۔(۱) اودۀ کول ، خوبولے کول ، ویدۀ کول ، (۲) مړول۔

**ـــــ کېدل** :-( وز) اص ۔ (۱) اودۀ کېدل ، خوبولے کېدل ، ویدۀ کېدل (۲) مړ کېدل (۳) غافلېدل۔

**اِیده** :-(اِيْ + دَه ) [ پ (وز) اس ، مؤ ، وا ، ج : ایدې ] اوده ، اِجازه۔

**اَیِ دها** :-(اَيِ + دَ + ها ) [ پ (سو) اس ، مذ ] و ـــ اژدها ۔

**اَئ دهام** :-(اَئ + دَ + ها + مْ ) [ پ (سو) اس ، مذ ] و ـــ اژدهام

**اَیډ پیډ** :-(اَيِ + ډ + پي + ډ ) [ پ (ب ، خ ) اس ] اصل نسل ، حسب نسب ، قام قبیله ، خېل خېلخان ، تومنه ، لکه : '' د فلاني ایډ پیډ راته وښایه''

**بې ایډه پیډه** :-(اص) بې اصله ، چې قام قبیلهٔ ئې معلومه نۀ وي ، بې هډه خرډک ۔

**اَیډریس** :-( اَيِ + ډ + رې + س ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : ایډریسونه ] (۱) د ځاے ځائیګي پته ، هغه پته چې د هغې په مدد چاته لیک او خط رسېږي ۔ د چا د کور محلت ، کلي ، ډاکخانې پته (۲) تقریر ، خطاب ، خطابه ۔

**ـــــ کول** :-(اص ) ځۀ غونډې ته تقریر کول ، غونډه مخاطبه کول۔

**ـــــ لیکل** :-( اص ) (۱) پته لیکل ، د خط د لفافې دپاسه د چا پوره ځاے ځائیګے لیکل ، (۲) سپاسنامه لیکل۔

**ایډماسټر** :-(ايِ + ډ + ماسْ + ټَ +رْ ) [ انګ ، هېډ ، ماسټر ، اس، مذ ، و،ج : ایډماسټران ( مؤ ، وا: ایډماسټره ، ج : ایډماسټرې)] د مدرسې مشر استاد ، د مکتب د سر استاد ، د مکتب رئیس سرمکتب ، سر معلم۔

**ایډمنسټرېټر** :-(ايِ + ډ + مَ+ نِ + سْ + ټ + رې + ټَ + رْ ) [ انګ ، اس، مذ ، وا ، ج : ایډمنسټرېټران ] ناظم ، منتظم ، نظم و ضبط ساتونکے۔

**ایډمنسټرېشن** :-(ايِ + ډْ + مَ +نِ + سْ + ټَ + رې + شَ + نْ ) [ انګ ، اس ، مذ ] نظم او ضبط ، انتظام۔

**ایډوانس**:-( ايِ+ډ+وان + س ) [ انګ،اس ، مذ ، وا ، ج : ایډوانسونه ] (۱) پېشګي ، هغه رقم چې اول ورکړے شي (۲) په ترقۍ ، ترقي یافته (۳) حمله ( فوځي اص )

**ایډوائزر** :-(ايِ + ډ + وائي + زَ + رْ ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا] مشیر ، مشوره یا صلاح ورکوونکے ، صلاح کار۔

**ایډوکېټ** :-(ايِ + ډو + کې + ټ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : ایډوکیټان (مؤ ، وا : ایډوکیټه ، ج : ایډوکیټې ) ] وکیل ، هغه څوک چې د قانون امتحان ئې پاس کړے وي او په عدالت کښې د چا دپاره په مقدمه کښې بحث کوي

**ایډیټر** :-( ايِ + ډي + ټَ + ر ) [ انګ ، اس، مذ ، وا ، ج : ایډیټران (مؤ ، وا: ایډیټرا ، ج : ایډیټرې ) ] هغه څوک چې اخبار یا رسالې ته ترتیب ورکوي۔اخبار چلوونکے۔

**ایډیشن** :-( ايِ+ډي + شَ + نْ ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : ایډیشنونه] ګڼه ، اشاعت ، طبع ، لکه : '' دا د رسالې څلورم ایډیشن دے''

**ایډي کانګ** :-( ايِ + دي + کا+ ن+ ګ ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا] د لوے عهدیدار سره اوسېدونکے ، دا عموماً د فوځي لویو افسرانو، ګورنرانو او صدر یا بادشاه سره وي۔حاضر باشي۔

**اِیذا** :-(اِيِ+ذا ) [ ع،اس،مؤ،وا]تکلیف ، دړد ، مصیبت ، آزار، ضرر

**ـــــ رسول** :-( اص ) دړد رسول ، تکلیف ورکول ، په مصیبت کښې اچول ، ضرر رسول ، ازار رسولا۔

**اِیر**:-(اِيْ + رْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ګټه ، بُوده ، امدني، حاصل

**اِیر** :-( اِيْ + رْ ) [ اف : پ (قاموس) ، اس مذ] ایرخط ، د ماشومانو یوه لوبه چې د یوې کرښې نه په خپل میري د بل ګاټي وباسي په دې شان لوبه ګټي۔

**اِیر** :-( ايْ + رْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : ایرونه ] ویر ، ژړا انګولا ، چغې سورې ، غم فریاد ،

**ـــــ ټنډور**:-( ب،خ ) اص۔شور زوږ ، ژړا انګولا ، ساندې ، د غم غزلې

**ـــــ جوړول** :-(اص ) (۱) شور زوږ کول ، ژړا انګولا شروع کول ، (۲) څۀ وران کار کول ، خبره غلطول

**ـــــ ژړل** :-( ب ، خ ) اص۔څۀ کار ورانول ، څۀ خبره خرابول۔

**ـــــ کول** :-(اص ) ژړا انګولا کول ، په مړي پسې ویر کول۔

**ـــــ ګډول** :-( اص ) (۱) ویر ګډول ، ویر جوړول ، ژړا انګولا سازول (۲) مصیب جوړول ، ورانے کول۔

**په ایر اخته کېدل** :-( اص ) (۱) په ژړا انګولا سرکېدل (۲) په څۀ لانجه یا معامله کښې ګېرېدل ، په څۀ تکلیف کښې کښېوتل ، په غم اوړېدل ، په بلا اخته کېدل۔

**اِیر** :-(ايِ + رْ ) [ پ (وز + بنو ) اس ، مذ ، وا ، ج : ایرینه ] اور ، هور

**اِیر** :-(ايِ + رْ ) [ پ (ب ، خ ) اس ، مذ] هېر، چې یاد نه وتے وي ، یر

**اِیراب** :-(اي +را + بْ ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذو وا ، ج: ایرابونه] و - اِراب۔

**اِیرابه** :-(اي + را + به ) [ اف : پ (قاموس) اس ، تصغیر ] د زیم او چولو دپاره وړوکې وله یا نهر۔

**اِیراد** :-(اي + را + د ) [ ع ، اس ، مذ ] مثال ، پېژند ګلو، ذکر ،

**اِیران** :-(اِيْ + را + نْ ) [ فا ، اس ، معر ] د یو اسلامي ملک نوم

**اِیرانجه** :-(اِيْ + را + نْ + جَه ) [ پ ( سو ) اس ، مذ ، وا] یو فرضي کافر چې د خلقو د هغۀ په حقله خیال دے چې حضرت علی رض صاحب په توره وهلے وو۔او د هغۀ زخم هر کال تازه کېږي۔

**د اِیرانجه پُوسکۍ جوړول** :-( سو ) اص ۔ خبره اوږدول ، خبرې ته طول ورکول ، خبره زنګول ، څۀ فیصله نۀ کول ، د اوښ پوسکۍ

**اِیراني** :-(اي + را + ني ) [ فا ، ص ، مذ ،وا ، ج : ایرانیان، ( مؤ ، وا: ایرانۍ ) ] د ایران اوسېدونکے۔

**اِیراؤ**:-(اِيْ + را + ؤ ) [ اف : پ (قاموس) اس ] د اوبو اخر ، اخري اوبه

**اِیرب** :-( ايْ + رَ + بْ ) [ اف : پ (قاموس) ص، مذ، وا ، (مؤ ، وا: ایربه ، ج : ایربې ) ] کوږ ، څوړند ، په ځنګ ، په ترڅ

**اِیربه لیکه** :-( اِيْ + رَ + به + لي + که ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ، وا ، ج : ایربې لیکې ] کږه کرښه ، کږه لیکه۔

**ایردي** :-(ايْ + رْ + دي ) [ پ (وز) اس ] ځاے ، کیمپ

**اِیرړے** :-(اي + ر + ړَے ) [ پ ، اس ، مذ ،وا ، ج: ایرړي ] و ـــ اررړے

**اِیر غالے** :-( ایر + غا + لَے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : ایرغالي ] د ایرو لوښے ایش ټرے

**اِیرغه تلۀ کول** :-(سو ) اص۔د اس یو چال ، د اس هوار تلل ، رهوار، یرغه تلل۔

**اِیرلۍ** :-(اي +رْ + لۍ ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ] د نر اوښ هغه اواز چې

په اوښې د کښېناستو یاختو په وخت کښې ئې اوباسي

**ایرم** :-(ايْ+رَ+مْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : ایرمونه] مرجان

**ایرمن** :-(اي+رْ+مَ+نْ) [پ (وز) اس،مذ ،وا] چمتیا ، اورلړونے ، شکروه

**اِېرمن** :-(اِيْ + رْ + مْ + نْ) [پ (ب ، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : اېرمنې] مېرمن ، خاونده ، څښتننه ، مالکه.

**ایرن** :-(اي + رَ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص، مذ ،وا، (مؤ ، وا : ایرنه ، ج : ایرنې)] خړ ، ایرې رنګې ، د ایرو په شان رنګ لرونکے ، خړوچن ، ایرې چن.

**ایروپز** :-(ايْ + رو + پَ + ز) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، (مؤ، وا : ایروپزه ، ج : ایروپزې)] ډرن ، یرندونکے ، ډرېه ، ډرپوک ، سپوتکے ، پاسو ، کېرلے ، بې همته ، ویرېدونکے.

**ایروپز توب** :-(ایروپز + تو + ب) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] یره ، ډار ، بې همتي ، پست همتي ، ویره ، ایروپزتیا ، ډرن توب.

**ایروپزتیا**:-(ایروپز+ ت+یا) [اف : پ (قاموس) ص،مؤ] و ـ ایروپزتوب

**ایروپزوالے**:-(ایروپز+وا+لے) [اف: پ (قاموس) ص، مذ] و ـ ایروپزتیا

**ایروپزي** :-(ایرو+پَ+زي) [اف: پ (قاموس) ص ، مؤ] و ـ اېروپزتیا

**اَېرول** :-(اي + رَ + و + لْ) [پ (ب ، خ) مص مت] هېرول ، د یاد نه ویستل ، فراموش کول ،

**اَېرونه** :-(اي + رَ + وَ + نه) [پ (ب ، خ) حمص] هېرونه ، د یاد نه ویستنه ، فراموش کونه.

**ایروېز** :-(ا + يَ + رَ+وېِ+ز) [انګ ، اس] د هوائي جهاز لاره ، هوائي چلن لارې.

**ایره** :-(ايْ + ره) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : ایرې] ایره ، د څۀ څیز سوې خاوره.

**ایري** :-(ايْ + ري) [پ (بنو ، وز) اس ، اش] و ــــ اورته.

**ایرې** :-(ايْ + رې) [پ ، اس ، مؤ ، ج : وا : ایره] ایرې ، د څۀ سوي څیز پاتې تورې خاورې.

ــــ **ایرې کول** :-(اص) بالکل سوځول ، ډېر زیات پستول ، ښۀ مېده کول ، ایرې جوړول ، رینجي رینجي کول.

ــــ **بادول** :- لُغ : ایرې په باد الوزل. اص : (۱) ایرې په سر لوستل یا اچول ، (۲) فضولې او عبث خبرې کول ، ناشوني کار ته لاس اچول (۳) (سو) سپېرۀ کول ، حیا اخستل ، بې عزته کول (۴) په منګل قبیله کښې دستوره ده چې د قسم خوړلو نه روستو د کور زنانه د قسم خوړونکي په وړاندې ایرې شندي چې د عذاب او قهر نه بچ شي.

ــــ **بادېدل** :- لُغ : ایرې په باد الوتل. اص : (سو) سپېرۀ کېدل ، د قسم خوړلو په وجه په بده ورځ اخته کېدل.

ــــ **پورې کول** :-(اص) مخ په ایرو خړول ، په مخ ایرې مښل.

ــــ **په خولۀ کېدل** :- لُغ : ایرې په خولۀ کښې پرېوتل ، اص : (۱) په څۀ مقصد کښې ناکامیابه کېدل،پاتې راتلل (۲) د عاجزۍ اظهار

ــــ **چاڼول** :- لُغ : ایرې چاڼ کول. اص (۱) بې فائدې او عبث کار کول ، بې بوده کار کول (۲) ډېر خوارېدل ، دومره خوارېدل چې د روزۍ درک ئې نۀ وي.

ــــ **کېدل** :-(اف) لُغ: سوځېدل ، خاورې کېدل ، ایرې جوړېدل. اص: (۱) شرمسار کېدل ، شرمنده کېدل ، شرمېدل. (۲) ډېر زیات وربېدل ، تباه کېدل

ــــ **مښل** :-(اص) ایرې په ځان پورې کول ،

ــــ **ورکول** :-(اص) هېڅ نۀ ورکول ، د څۀ څیز نه محرومه کول، بې برخې کول ، خاورې ورکول ، خاورې ایرې ورکول.

**په ایرو ځان لړل**:-لُغ : ایرې په ځان مښل، اص : ډېره عاجزي اختیارول ،

**په ایرو مخ سپېرۀ کېدل** :-(اص) شرمنده کېدل ، شرمسار کېدل

**په سرې پړې ایرې کښېناستل** :- لُغ : په یخې یا سړې ایرې کښېناستل ، اص : ناأمېده کېدل ، محرومه پاتې کېدل.

**خاورې ایرې** :-(اص) ډېر معمولي ، هېڅ نه.

ــــ **کېدل**:-(اص) عبث ضائع کېدل ، په ښېګړه نۀ راتلل ، بربادېدل

**د ایرو ډانګ** :-(وز ، پ) لُغ : د ایرو کوتک یا لوړ. اص : فرضي څیز، هغه څیز چې وجود نۀ لري.

**د خاورو څخه ولاړېدل پر ایرو کښېناستل** :-( اف ) اص . سودمن او د نفع کار پرېښودل او بې فائدې زیان من کار ته لاس اچول.

**سپېرۀ ایرې** :-(اص) خاورې ایرې

**سړې پړې ایرې** :-(اص) (۱) یخې یا مړې ایرې (۲) د تباهۍ حالت

**سکارۀ ایرې** :- لُغ : سکارۀ او ایرې. اص : سوځېدلے

**اِیرۍ** :-(ا + يْ + رَ + ی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] تېزې تُندې خبرې ، د خبرو جنګ ، پېغورونه ، سپکې سپورې خبرې. د عکس خبرې.

ــــ **وهل** :-(اف) اص : خولۀ وهل ، په یوه مخه سپکې سپورې وئیل، تېزې او تُندې او د جګړې خبرې کول.

**اِیرې بیري**:-(اي + رېْ + بي +ري) [پ (شن) اس] شلغاتي ، سلغاتے ، ټوپنے ، د ماشومانو یوه لوبه.

ــــ **مات** :-(اص) ماشومان چې د ایرې بیرې په لوبه کښې د یو بل ټوپنې یا کربښې رنګوي. شلغاتي تنې وني.

**اِیړ** :-(ا+يْ + ړْ) [اف : پ ( قاموس) اس ، مذ ،وا، ج: ایرونه (ق)] (۱) د کشتیو یا د بحري فوځ یوه دسته چې د یو سردار حکم لاندې وي. (۲) قطار

**اِیړ** :-(ا + يْ + ړْ) [پ ، ص] د برغدون معنې ورکوي. لکه : ''دوه ایړه ، درې ایړه''.

**اَېړ** :-(ا+ ي + ړ) [پ (ظفر) اس ، مذ] په ځنګل کښې وني وهل او بل ځاے ته ئې د رسولو په غرض په سیند کښې په یو مخه ګذارول

ــــ **راوتل** :-(ظفر) اص. په سیند کښې ګرګې په یو مخه راتلل.

ــــ **کول** :-(ظفر) اص. په ځنګل کښې د اونو د وهلو کار کول ، او د تجارت په غرض ئې په سیند کښې راوړل.

**په اېړ راتلل** :-(ظفر) اص . (۱) کلهم راتلل، د سېلمې راتلل ، (۲) په یو قطار راتلل

**اِیړ** :-(اي + ړْ) [پ (ب ،خ) ص،مذ ، (مؤ ، وا: ایرا ، ج : ایړې)] ویړ ، خور ، غوړېدلے

**ایرا** :-(ا + يْ + را) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] اوتر ، وارخطا

**ایراب** :-(ا+يْ + را+ بْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] یو قسم تریخ بوټے دے.

**ایراو** :-(ا + يْ + را+ و) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو قسم وابنۀ دي چې د ولو په غاړه راټوکېږي او شنۀ کېږي.

**ایړ پیړ**:-(ايْ+ړْ+ پي +ړْ) [پ (ب ، خ) ص ، مذ] خور وور ، ویړ غوړېدلے

**ایړول**:-(ايْ+ړَ+وَ+ لْ) [پ (ب ، خ) مص، مت] ویړول ، غوړول، خورول

**ایړونه**:-(ايْ+ړَ+وَ+نه) [پ (ب، خ) حمص] ویړونه، غوړونه، خورونه

**ایړوونکے** :-(اي + ړَ + وُو + نْ + کَے) [پ (ب ، خ) اس ، فا ع ، مذ، وا، ج : ایړوونکي] ویړوونکے ، غوړوونکے ، خوروونکے.

**اېړه** :-(اي + ړۀ) [پ (وز) اس ، مذ] اغړلې اوړۀ ، اخشلې اوړۀ ، لوندۀ اوړۀ، لمدۀ شوې ویره ، وېړۀ، ویړۀ اغاڅولې دوڼه.

**اېړه** :-(اي + ړَه) [پ (ب ، خ) اس ، مؤ] وېړه ، ویړه ، شپول، باړه

**اېړي** :-(اي + ړ + ي) [پ (ظفر) اس ، ص ، مذ] هغه سړے چې دا ډېر کار کوي. د اېړ خاوند ،هغه څوک چې د اباديۍ د لرګو کاروبار کوي.

**اِیړے** :-(ا + يْ + ړے) [پ ، اس ، مذ ، وا] و ــ ایړے ، اړے.

**ایریا** :-(ا+يْ+رِ+یا) [پ (سو) ص] ویریا ، مفت،هسې ، بې بیعې

**ایرېدنه** :-(اي+رې+دَ+نه) [پ (ب ، خ) حمص] ویرېدنه ، غورېدنه ، خورېدنه

**ایزارول** :-(ايْ+زا+رَ+و+ل) [پ (سو) مص مت] ویزارول ، شلول ،څیرې کول

**ایزد** :-(ا+يْ+زَ+دْ) [فا. اس، مذ، وا، ج: ایزدان] خدا ے پاک

**ایزد تعال** :-(ایزد+تَ+عا+ل) [فا، اس ، معر، مذ، وا] خدا ے پاک ، رب العالمین

**ایزګي** :-(ايْ+زْ+ګ+يْ) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] و ـ ازګي

**ایژ** :-(ا+يْ+ژ) [پ (وز) اس، مذ ، وا، ج: ایژان] یږ، ایږ ، مېلو

**ایژه** :-(اي+ژَه) [پ (وز) اس ، مؤ ، وا، ج: ایژې] و ـ اوږه

**ایژه** :-(اي+ژَه) [پ (وز) اس، مؤ، وا] د غلې یوه پیمانه ، اوږې

**ایژۍ** :-(ايْ+ژَۍ) [پ (وز) اس ، مؤ ، وا، ج] اوږۍ ، اوژۍ ، د غاړې یو کالے.

**ایژے**:-(ايْ+ژَے) [اف :پ (قاموس) اس،مذ] د ډیوې لرګے ، ډیوټ

**ایـږ** :-(ا+يْ+ګ یا ا+يْ+ژ) [اف: پ (قاموس) ظفر، اس، مذ ، وا، ج: ایران (مؤ ، وا: ایږه ، ج : ایږې) یږ ، مېلو ، ایژ ، یږ ، هګ ، بور.

**ایـږدل** :-(ا+يْ+ګ+دْ+لْ یا ا+يْ+ژ+د+لْ) [اف ، پ (قاموس) مص مت] ایښوول ، کښېښودل ، اَږدل.

**ایـږدونکے** :-(ا+يْ+ګ+دُو+نْ+کَے یا ا+يْ+ژْ+دُو+نْ+کے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ،وا ، ج : ایږدونکي] ایښودونکے ، کښېښودونکے ، اژدونکے.

**ایس** :-(ا+يْ+سْ) [اف : پ (قاموس) کلمه] اوه ، د غوائي د ایلولو ، اصیلولو یا پاځولو کلمه ، ایش.

**ایس** :-(اي+سْ) [پ (وز، بنو) ] اوس ، په دې وخت ، په دې ساعت

**ایس** :-(اي+س) [اف : پ (قاموس) ص] (۱) ښکلا ، ښکلتیا ، ښکلوالے (۲) ځان ښائینه.

**ایسا** :-(ا+يْ+سا) [پ ، ص] ویسا ، اتبار

**ایسار** :-(ا+يْ+سا+ر) [پ ، ع: حصار ، ص ، مذ، (مؤ ،وا: ایساره ج: ایسارې)] (۱) قلعه ، فصیل (۲) روستو پاتې ، ګېر ، تم ، معطل ، بندي ، نیولے ، اټال ، لکه : "هغه زمونږ نه ایسار شو" (۳) په شک کښې ، په شش و پنج کښې.

**ایسارتوب** :-(ایسار+تو+بْ) [پ ، حمص ، مذ ] (۱) ایسارتیا ، ګېرېدل ، ماتلېدل، اټالېدل، نیولے کېدل،ایساروالے ، ایسارونه (۲) بندیدنه ، بندش

**ایسارتیا** :-(ایسار+تْ+یا) [پ ، حمص ، مؤ] و ـ ایسارتوب

**ایساروالے** :-(ایسار+وا+لے) [پ، حمص] و ـ ایسارتوب

**ایسارول** :-(ایسا+رَ+وَ+لْ) [پ، مص مت] (۱) پاتې کول ، ماتلول ، اټالول ، تم کول ، تړل (۲) ګېرول ، بندي کول.

**ایسارونه** :-(ایسا+رَ+وَ+نه) [پ ، حمص] و ـ ایسارتوب

**ایسارونکے** :-(ا+يْ+سا+رَ+وُو+نْ+کے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ، وا ، ج: ایساروونکي] (۱) پاتې کوونکے،ماتلوونکے، اټالوونکے (۲) بندوونکے ، ګېروونکے ، ګرفتاروونکے ، تړونکے.

**ایسارېدل** :-(ایسا+رې+دَ+لْ) [پ ، مص لا] (۱) پاتې کېدل ، ماتلېدل ، اټالېدل ، (۲) ګېرېدل ، بندېدل ، تړلے کېدل ،

**ایسارېدنه** :-(ایسا+رې+د+نَه) [پ ، حمص] (۱) اټالېدنه ، پاتې کېدنه ، ماتلېدنه (۲) بندېدنه ، ګېرېدنه ، تړلے کېدنه.

**ایسارېدونکے** :-(ایسا+رې+دُو+ن+کے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا، ج: ایسارېدونکي ] (۱) پاتې کېدونکے ، اټالېدونکے ، ماتلېدونکے ، (۲) بندېدونکے ، ګېرېدونکے

**ایسبغول** :-(ا+يْ+س+بْ+غو+لْ) [فا: اسپغول ، اص ، مذ] و ـ اسپغول

**ایسپ** :-(ا+يْ+س+پْ) [پ ، ع ، یوسف ، اس ، معر، مذ: (۱) د یو پېغمبر نوم (۲) یو عام نوم.

**ایسپرین** :-(اي+س+پل+ري+ن) [انګ ، اس ، مذ ، وا، ج] یو قسم دارو چې د سرخوږي او نزلې وغېره دپاره استعمالېږي.لکه : "یوه ګولۍ ایسپرین راؤړه"

**ایسپ ګل** :-(ایسپ+ګُ+لْ) [پ (یو) اس ، مذ] و ـ اسپغول.

**ایستل** :-(ا+ي+س+تَ+لْ) [پ ، مص مت] و ـ استل

**پرق ایستل** :-(اص) (۱) څپېړه ورکول ، وهل ، ډبول (۲) د دوؤ څیزونو د یو بل سره په وهلو اواز ایستل.

**ټس ایستل** :-(اص) (۱) څوک څپېړه یا بل څۀ وهل ، ډبول ، (۲) د ګوتو د جوړونو نه اواز ایستل.ناراستې ایستل ، ټسونه ایستل ټکونه ایستل.

**خولې نه ایستل** :-(اص) (۱) خبرې کول ، په خولې وئیل ، څۀ خبره یا لفظ د خولې نه ایستل (۲) په څۀ خبره بحث بند کول (۳) د چا خلاصول.

**خیال نه ایستل** :-(اص) فکر وریسې نۀ کول ، د خیاله ایستل ، هېرول ، پروا نۀ کول.

**د سترګو نه ایستل** :-(اص) (۱) د نظر نه ایستل ، نظر نۀ پرې ساتل ، (۲) نظر پرې تېرول ، کتل (۳) په سترګو کښې پرېوتے څیز باهر کول یا اوباسل (۴) بل ته د خوراک په وخت ځیر ځیر کتل ، د حرص په نظر کتل.(۵) د نظره کول.

**د ګوتو نه ایستل** :-(اص) د لاس نه ایستل ، د یو څیز نه محرومه کېدل ، د یو څیز قبضې نه وتل.

**د لاس نه ایستل** :-(اص) و ـــ د ګوتو نه ایستل.

**د نظر نه ایستل** :-(اص) و ـــ د سترګو نه ایستل.

**ږز ایستل** :-(اص) (۱) وهل ، ډبول ، مړ کول ، په ټوپک تماچه ویشتل (۲) کار ختمول

**زړۀ ایستل** :-(اص) (۱) تکلیف رسول ، ربړول (۲) یرول ، ویرول

**مخه ایستل** :-(اص) (۱) لار جوړول (۲) ځان ته د روزګار یا ترقۍ بندوبست کول (۳) په لو کښې وړاندې تلل.

**مېدان ته را ایستل** :-(اص) (۱) یوه خبره ښکاره کول یا څرګندول (۲) د چا شرمول، د چا عیب څرګندول ،

**ایستلے** :-(ا+يْ+س+تَ+لے) [پ ، مف ، مذ ، وا، ج : ایستلي] باهر کړے شوے ، ایستلے ، ویستلے.

**ایستنګ** :-(ا+يْ+سْ+تَ+نْ+ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] ایستنه ، ویستنه ، پیستنه ، باهر کونه

**ایستنه** :-(ا+يْ+سْ+تَ+نه) [پ ، حمص] و ـــ ایستنګ

**ایستونکے** :-(ا+يْ+سْ+تُو+نْ+کے) [پ ، اس ، فاع ، مذ، وا، ج : ایستونکي] ویستونکے ، باهر کوونکے ، یستونکے.

**ایسته** :-(ا+يْ+سْ+تَه) [پ ، اس اش] ایشته ، دېخوا ته.

**ـــ اورته** :-(اص) اخوا دېخوا ، دلته هلته ، دې ځا ے هغه ځا ے.

**ـــ بیسته** :-(اص) هلې دورې ، دلې دورې ، ایشته بیشته.

**ـــ کول** :- مص تر ، مت (۱) لرې کول ، یو خوا ته کـول ، یـو طرف ته کول (۲) برطرف کول ، د کار نه فارغول.

**ـــ کېدل** :-(مص تر ، لا) (۱) لرې کېدل ، یو خوا ته کېدل ، یو طرف ته کېدل (۲) برطرف کېدل ، د کار نه فارغېدل.

**ایسټ** :-(ا+يْ+سْ+ټْ) [انګ ، اس ، مذ] مشرق ، نمرخاتۀ ، ختیځ

**اِیسم**:-(اِيْ + سَ + مْ) [ پ (وز) اس، مذ، وا، ج : ایسمنه ] جادو، سحر

**اېسم گر** :-( اېسم + گ + رْ ) [ پ (وز) اس، فا ع ،مذ ، وا ،ج : اېسم گران ، اېسم گرون ، ( مؤ ، وا: اېسم گره ، ج : اېسم گرې ) ] جادوگر ، سحرگر ، کوډې کوونکے۔

**اِیسند** :-( ا + يْ + سَ + نْ + دْ ) [ اف : پ (قاموس) ص، مذ ، (مؤ ، وا: ایسنده، ج : اِیسندې) ] ظاهر ، ځرګند ، ښکاره ، جوت، برڅېره

**اِیسو** :-( ا+ يْ + سو ) [ پ ( ب ، خ + وز) اس ، مؤ ] ویسا ، ایسا ، اتبار ، اعتبار۔لکه: ''په فلاني مې ایسو نشته''۔

**اِیسوب** :-( ا+ يْ + سو + بْ ) [ پ (عا) ع : حساب ، اس، مذ، وا، ج: ایسوبونه یا ایسوبینه ] حساب ، حساب کتاب، رقم پیسې۔

**اِیسور** :-( ا+ يْ + سو + رْ ) [ پ ( ب ، خ ، وز) ص ، مذ( مؤ ، وا: ایسوره ، ج : ایسورې) ] (۱) ایسار، بندي، (۲) تم ، اټال ۔

**اِیسوړے** :-( ا+ يْ + سو + ړې) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : ایسوړي ] د ایسوړو د قبیلې یو سړے ، لکه: ''هغه ایسوړے دے''

**اِیسول** :-( ا+ يْ + سَ + و+ لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] ځرګندول ښکاره کول ، په ګوته کول ، زېب ورکول ، ښکلے کول ، ډولے کول ، ښائسته کول۔

**اِیسولے** :-( ا+ يْ + سَ + وَ + لَے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ایسولي ] ځرګند کړے شوے ، ښکاره کړے شوے ، ظاهر کړے شوے ، په ګوته کړے شوے ، ډولے کړے شوے ، ښائسته کړے شوے۔

**اِیسوُونکے** :-( ا+ يْ + س + وو+ نْ + کَے ) [ اف: پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : ایسوونکي ] ځرګندوونکے ، ښکاره کوونکے ، ظاهره وونکے ، په ګوته کوونکے ، ښکلے کوونکے ، ډولے کوونکے۔

**اِیسې** :-( ا+ يْ + سې ) [ پ (افر) اس ، اش ] ایسته ، اخوا ، دېخوا ۔

**اِیسې** :-( اِيْ + سې ) [ پ ( خل + افر ) ] یو خوا ته ،یوطرف ته ، یو پلو ته

**ـــــ کول** :- مص تر ، مت۔اخوا یا دېخوا کول ، لرې کول ، ایسته کول

**ـــــ کېدل** :- مص تر،لا۔ایسته کېدل،اخوا یا دېخوا کېدل،لرې کېدل

**اِیسې پیسې**:-( ایسې+ پې+ سې ) [ پ ( مر ، ص ] انې بانې ، چل ولاینګرے دیګرے ، انګرے دنګرے۔

**اسېدل**:-( اِي + سې + د+ ل ) [ پ (بنو) فع لا ] اوسېدل ، یوسېدل ، یسېدل ، استوګنه کول ، استوګن کېدل۔

**یسېدل**:-( ا+ يْ + سې + دَ + لْ ) [ اف: پ (قاموس) مص لا ] ښکاره کېدل،رګندېدل،ظاهرېدل،ښکلے لګېدل،زېب کول،ډولے کېدل ،

**ښهٔ ایسېدل**:-( اَف ) اص ۔ ښهٔ ځرګندېدل ، ښهٔ ښکاره کېدل ، په ښکلې ډول ظهرېدل ، ښهٔ زېب ورکول۔

**ایسېدلے** :-( ا+ يْ + سې + دْ + لَے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : ایسېدلي ] ښهٔ ښکاره شوے ، ښائیدلے ، ډولے شوے۔

**ایسېدنګ** :-( ا+ يْ + سې + دَ + نْ + ګْ ) [ اف: پ (قاموس) حمص] ایسېدنه ، ښائیدنه ، ښکارېدنه۔

**ایسېدنه**:-( ا+ يْ + سې + د +نَه ) [ اف: پ (قاموس) حمص] و ـ ایسېدنګ

**ایسېدونکے** :-( ا+ يْ + سې + دُو + نْ + کَے ) [ اف: پ (قاموس) فا، ع، مذ ، وا، ج : ایسېدونکي ] ښکاره کېدونکے ، ښکارېدونکے ، ښائیدونکے ، زېب ورکونکے ، ډولے ښکاره کېدونکے۔

**ایسېدهٔ** :-( ا+ يْ + سې + دهٔ )[اف: پ (قاموس) حمص] ښکارېدهٔ ، ښکلتیا ، زېب

**اِیش**:-( ا+ يْ + شْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) وېش ، تقسیم اېش ، وَش ، یېش (۲) د خر د ودرولو دپاره دا کلمه وئیلے شي۔

**ـــــ کول** :- مص تر ، مت۔وېش کول ، تقسیم کول۔

**ـــــ کېدل** :- مص تر ، لا۔وېش کېدل ، تقسیم کېدل۔

**اِیش** :- ( ا + يْ + شْ ) [ پ (وز) اس، مذ ، وا ، ج : ایشون (مؤ ، وا: ایشه، ج : ایشې) ] اوښ ، اُوش ، یش

**دایش اېبه کول** :-(وز) مص تر ، اوښ اوبهٔ کول ، اُوښ ته اوبهٔ ورکول

**دایش پچې** :-(وز) اص۔(۱) پکوړې (۲) ګلاب جامن۔

**اېش** :-( اِي + شْ ) [ پ، اس ، مذ ،وا ، ج : ېشونه ] ځوښ ، یش ، خوټ ، جوش۔

**ـــــ ورکول** :- مص تر ۔ جوش ورکول ، ځوښ ورکول ، یش ورکول ، خوټکول ، ایشول

**اِیش اِیش** :-(اص) (۱) وش وش ، واه واه ، وخ وخ ، (۲) د سختې یخنۍ په وخت د خولې نه دا آواز اُوزي۔(۳) د ورکوټي ماشوم د ګډولو په وخت وئیلے کېږي۔

**اِیشته** :-( ا+ يْ + ش + تَه ) [ پ ، اس ، اش ] ایسته ، دېخوا ۔

**اِیشته بیشته** :-(اص) و ـــ ایسته بیسته۔

**اِیشله**:-( ا+ يْ+شَ +لَه ) [ اف: پ (قاموس) اس ،مؤ ، وا، ج : ایشلې] د ښځو ګډا ، نڅا

**ـــــ کول** :-(اف) مص تر ، د ښځو ګډا کول ، نڅا کول۔

**اِیشلې** :-( اِي + شْ + لې ) [ پ ( ب ، خ ) اس ، مؤ ، وا ، ج ] وېشلې ، وېشلۍ ، یو قسم د غنمو نه پخه ډوډۍ چې زیاته پسته او نرمه وي۔

**اېشمه** :-( اِي + شْ + مَه ) [ پ (بنو) اس ، مؤ] باد ،وړمه ۔ لکه :- '' سړه اېشمه روغله ''۔

**اِیشنا** :-( ا+ يْ + ش+ نا ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] (۱) ایش ، ځوښ ، جوش ، خوټ (۲) تاؤ ، غصه۔

**اِیشناو** :-( ا+ ي + شْ + نا + و ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، ج: ایشناوُونه] جوش ، تاؤ۔

**اېشند** :-( اِي + شَ + نْ + دْ ) [ اف : پ (قاموس) ص، مذ ، وا، (مؤ ، وا: اېشند ، ج : اېشندې) ] اېشېدونکے ، په جوش کښې یشند

**اېشنده** :-( اِي + شَ + نْ + دَه ) [ اف: پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ ] ګرمه او سخته تبه ، توده تبه ، تېزه تبه۔

**اِیشنل** :-( اِيْ + شْ + نَ + لْ ) [ پ (سو) مص مت ] رېشل ، مالوچ یا وړۍ په لاس سره بېلول

**اَیشو** :-( اَ+ يْ + شو ) [ اف : پ (قاموس) کلمه ] د افسوس او د حسرت ټکے ، د حېرانګۍ او افسوس په وخت وئیلے کېږي۔

**اِیشول** :-( ا+ يْ + شَ + وَ + لْ ) [ اف: پ (قاموس) مص مت] (۱) یشول اېشول ، جوش ورکول ، ډېر ګرمول، خوټکول (۲) غصه کول ، پرېشانه کول۔

**اېشول** :-( اِي + شَ + وَ + لْ ) [ پ ( ب، خ ) مص مت ] و ـــ ایشول

**اِیشولې** :-( ا+ يْ + شَ + وَ + لَے ) [ اف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا، ج: ایشولي ] خوټکولې ، جوش ورکړې شوې ، ځوښولې ، یشېدلې

**اِیشولې شیره** :-( ایشولې + شي + رَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ] یو قسم حلوا چې دا وړو ، چینو، پئیو او غوړو نه ئې پخوي

**اِیشونګ** :-( ا+ يْ + شَ + وَ + نْ + ګ ) [ اف : پ (قاموس) حمص] ایشونه ، اېشونه، جوش ورکونه ، خوټکونه۔

**اِیشونه**:-( ا+يْ+شَ + وَ + نَه ) [ اف ، پ (قاموس) حمص] و ـ ایشونګ

**اِیشُوونکے** :-( ا+ يْ + شَ + وُوْ + نْ + کَے ) [اف: پ (قاموس) اس ، فا ، ع : مذ ، وا، ج : ایشوونکي ] جوش ورکوُونکے ، خوټوونکے یشوُونکے ، ځوښوونکے۔

**اِیشېدل** :-( ا+ يْ +شې +دَل ) [ اف :پ ( قاموس ) مص لا] (۱) یشېدل جوش ورکېدل ، ځوښېدل ، خوټکېدل ، (۲) غصه کېدل ، قهرېدل (۳) د سختې تبې نیول ۔

**ایشېدلے** :-(ا+ يْ + شې + دَ + لے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : ایشېدلي ] (۱) جوش ورکړے شوے ، یشېدلے ، ایشېدلے ، خوټکېدلے ، ځوښېدلے (۲) غصه شوے ، قهرېدلے (۳) د سختې تبې نیولے۔

**ایشېدنګ** :-(ا + يْ + شې + دَ + نْ + ګ ) [ اف : پ (قاموس) حمص] ایشېدنه ، ایشېدۀ ، ځوښېدنه ، خوټکېدنه۔

**ایشېدنه**:-(ا+يْ+شې+دَ+نَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـ ایشېدنګ

**ایشېدُونکے** :-( ا+ يْ + شې + دُوْ + ن+ کَے ) [ اف: پ (قاموس) مف، مذ ،وا ،ج:ایشېدونکي]ایشېدونکے ،ځوښېدونکے، خوټکېدونکے ،

**ایشېدۀ**:-(ا+ يْ+ شې + دۀ ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـ ایشېدنګ

**ایشې** :-(اَ+ يْ+ شې ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ] د ماشومانو په ژبه کښې غوښې ته وائي۔

**اېښ پېښ** :-(ا+يْ+ خ + پې + خ یا ا + يِ+ ش + پې + ش ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] (۱) اریان دریان ، وارخطا ،فکرمن ، تعجب اخستے ، دلګیر (۲) سو ـ بېدار ، ویښ ، چې اودۀ نۀ وي ځیرک ، په خبره پوهېدونکے ـ

ـــــ **تلل** :-( اف ) اص ـ حېران او فکر من کېدل ، اریان دریان کېدل ، دلګیر کېدل ـ

**اېښې پېښې سترګې نیول** :-( اف ) اص ـ سترګې بقې نیول ، حېرانېدل ، اریان دریان اودرېدل۔

**اېښل** :-( ا+ يْ + خ+ لْ یا ا + يْ + ش + لْ ) [ پ ، مص مت ] اېښودل، کښېښودل ، اړدل ، اېښول ، کښېښول۔

**اېښندے** :-(ا+ يْ + خْ + نْ + دے یا ا + يْ+ ش+ نْ + دَے ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ ، ج : اېښندي] انډر ، یو قسم مرغۍ چې زېړ رنګ ئې وي۔

**اېښودل** :-(ا+يْ+خو+دَ+ل یا ا + يْ+ شو + دَ+ لْ) [ پ ، مص] و ـ اېښل۔

**اېښودنه** :-(ا+ يْ+ خو+ دَ + نَه یا ا + يْ+ شو + دَ + نَه ) [ پ، حمص] اېښودۀ ، کښېښودنه ، ږدنه۔

**اېښودُونکے** :-(ا+يْ+ خو + دُو + نْ + کَے یا ا + يْ+ شو+ دو+ نْ + کے ) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اېښودُونکي ج کښېښودونکے ، ږدونکے ، اېښونکے۔

**اېښودۀ**:-(ا+يْ+خو+ دۀ یا ا + يْ+ شو + دۀ ) [ پ ، حمص ] و ـ اېښودنه

**اېښوول** :-( اي + خو + وَ + لْ یا ايْ + شو+وَ + لْ ) [ اف: پ (قاموس) مص مت ] و ـــ اېښل۔

**اېښوونګ** :-( ايْ + خو+ وَنْ +ګ یا ايْ + شو + وَنْ + ګ ) [اف: پ (قاموس) حمص ] اېښودنه ، کښېښونه۔

**اېښووُونکے** :-(ا+ يْ+ شو + وُوْ + نْ + کَے ) [اف: پ (قاموس) اس، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اېښوونکي ] اېږدونکے ، کښېښودونکے ۔

**اېښوونه**:-(اي + خو + وَ + نَ ) [اف: پ (قاموس) حمص ] و ـ اېښوونګ

**اېښوونے** :-(ا+ يْ+خو + وَ + نَے یا ا + يْ+ شو + وُ + نَے ) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ،وا ، ج : اېښووني ] و ـ اېښووونکے۔

**ایضاح** :-(اي+ضا + حْ ) [ ع ، اس ] وضاحت ، تشریح ، بیان ،

**ابغ** :-( اي + غْ ) [ پ ،ص ،مذ ،(مؤ ،وا: ابغه ) ] (۱) د نبغ مترادف د نبغ سره یو ځاے وئیلے شي۔لکه : ابغ نبغ (۲) شوخ ، سر زوره کلکه ـ

**ابغ بیغ** :-( ايْ + غْ + بيْ + غْ ) [ اف: پ (قاموس) ص ، مذ] ابغ نبغ ، شوخ ، ګستاخ ، سرزوره۔

**ابغ سترګے**:-( ابغ +س+تَ+رْ+ ګے ) [ اف: پ (قاموس) اص،مذ،وا ،ج : ابغ سترګي ] سپین سترګے ، نبغ سترګے ، نبغکے ، بې حیا ، بې شرم۔

**ابغ نبغ** :-(اي + غْ + نې + غْ ) [ پ ، ص ، مذ ، وا ، ج (مؤ ، وا: ابغه نبغه، ج: ابغې نبغې ) ] (۱) د یوې خبرې خاوند ، صاف زړے ، چې چلول نۀ ورځي (۲) ولاړ ، سخت ، لک (۳) و ـــ ابغ بیغ۔

**ابغر** :-(ايْ+ غَ+ رْ) [تُر ، اس، مذ ، وا] (۱) سانډ ، انډر څاروے ، اندۀ ، هغه ځناور چې خصي شوے نۀ وي۔ (۲) زورَور ، د غټې جُثې خاوند ، هغه سړے چې هر چاته ښکر اړموي۔

**ځان ابغر ګڼل** :-( اف ) اص ـ ځان لوے شمارل ، ځان په څۀ کښې حسابول ، تکبر او لوئي کول۔

**ایک تنها** :-(ايْ + کْ + تَ + نْ + ها) [پ (وز، ص ] ایک یوازې ، بېله ګوښې ، ایک ، لویاجے ، ایک یو ، ایکي یو ، لک لویاجے

**ایک لویاجې** :-(ایک + لو + یا + جې ) [ پ (ګن) ص ] و ـ ایک تنها

**ایکوټېن**:-( ايْ +کو + نْ +ټېن ) [ پ (ع) اکاؤټېنټ ، انګ : اس، وا] اکاونټېنټ ، محاسب

**ایکونه** :-(ايْ+ کو +نَه ) [ پ (ب ، خ + وز) اس ، مؤ ، وا، ج : ایکونې] کندو ، کُولے ، د خاورو نه جوړ شوے څیز چې په ځینې علاقو کښې خلک غله پکښې کښې ږدي۔

**ایکي** :-(ايْ + کي ) [ اف :پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا، ج : ایکې ] پیسه ، د مسو یا د زیړو پیسه ، توره پیسه۔

**ایکي چاپ** :-(ايْ + کيْ + چا + پ ) [ پ (ب ، خ) اس ، مذ] ایکي چاک ، ګُلي ډنډا ، ابس ډنډې۔آوې جاوې۔

**ایکي چاک**:-(ایکي+چا +ک ) [ پ (ب ، خ) اس ، مذ] و ـ ایکي چاپ

**ایک یو** :-(ایک ، يَو ) [ پ ، ص ] و ـــ ایک تنها ـ

**ایکي یو** :-(ايْ + کيْ + يَو ) [ پ ، ص ] و ـــ ایک تنها

**ایک یواځې** :-(ایک + يَ + وا + دزې ) [پ، ص] و ـ ایک تنها

**ایکي یواځې** :-(ایکي +يَ+ وا + دزې ) [ پ، ص) و ـ ایک تنها

**ابګا** :-( اي + ګا ) [ پ ( ب ، خ ) اس ] بېګا ، وېګا ، ماښام۔لکه:" د ابګا ډوډۍ ما سره اوخوره " یا " ابګا ډوډۍ به تاسره خورم "

**ابګانه** :-(ايْ+ ګا + نَه ) [ پ (سو) ص ] په اتفاق

**ابګائي** :-(اي + ګا + ئي ) [ پ (ب ، خ) ص ] بېګائي ، وېګائي ، ماښام ته۔

**ایګره** :-(اي + ګ + ره ) [ اپ (وز، بنو) اس ، مؤ ، وا ، ج : ایګرې] و ـــ اوګره۔

**ابل**:-( اي + لْ ) [ پ ، ص ، مذ ، (مؤ، وا، ابله ، ج : ابلې ) ] (۱) تابع د حکم لاندې ، مطیع ، (۲) ساتلے ، پاللے ، روږدې ، کورنۍ کړې ، لکه : "تنزرے ئې ابل کړو"

ـــــ **کول** :- مص تر ، مت۔(۱) تابع کول ، د حکم لاندې راوستل ، مطیع کول (۲) پالل ، ساتل ، روږدې کول۔

ـــــ **کېدل** :-مص تر ، لا۔(۱) تابع کېدل ، د حکم لاندې راتلل ، مطیع کېدل (۲) روږدې کېدل ، ساتلے کېدل۔

**ابل** :-(اي + ل ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : ابلونه ] قبیله ، ټبر ، خاندان، ال

**ابلاج** :-( ايْ + لا+ جْ ) [ پ (ع) ع : علاج ، اس ، مذ ، وا: ج : ابلاجونه یا ابلاجینه ] علاج ، دارودرمل۔

**ابلاق** :-(ايْ+لا+ قْ) [تُر ، پ (راوړتې) اس ، مذ ، وا ، ج: ابلاقونه] (۱) د قشلاق مخالف، د کوچیانو د ژمي د موسم تېرولو ځاے (۲) خرډک ، بې نسله.

**ابلان** :-(اي + لا+ نْ ] اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] یو قسم قبا یا خلکه چې لستوڼي ئې نۀ وي۔

**ابلان** :-( اي + لا+ نْ ) [ پ ، (ع) ع : اعلان ، اس ،مذ، وا، ج: ابلانونه یا ابلانینه ] اعلان ، د خبرې مشهوري ، غږ۔

**ابلاني** :-(اي +لا+ نيْ ) [ان ، پ (قاموس۔ق) ص ، مؤ] اطاعت ، حکم مننه ، فرمانبرداري ، غاړه کښېښودنه ، متابعت، ابلائي

**ابلائي** :-(اي + لا+ ئيْ ) [ پ ، ص ، مو ] و ـــ ابلاني۔

**ایلبند** :-(ايْ + بَ + نْ + د ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) ډېره ، دېره ، د اوسېدو ځاے ، ټېکانه ، (۲) په يخو ځايونو کښې د ګرمۍ د موسم ورشو۔

**ایلته اولته** :-(ايْ + لْ + ته + او + ل + تَه ) [ پ (وز) اس اش ] و۔الې دورې

**ایل ځاروے** :-( اي + لْ + ځا + ر + وے ) [ اف : پ (قاموس) اس، ص، مذ] کورنے ځناور ، روږدے يا ساتلے ځاروے ، آموخته ځناور۔

**ایلغار**:-(ايْ+لْ+غا+رْ ) [ تُر ، پ (راورټي) اس ، مذ ، وا : ج : ايلغارونه ] حمله ، چپاؤ ، يلغار ، يلغر ، يرغل ، د لښکر حملې ته وئيلے کېږي

—— **کول** :-مص مت۔ حمله کول ، چپاؤ کول ، يرغل کول۔

**ایلغر** :-(ايْ +لْ + َ + رْ ) [ پ (راورټي)اس ، مذ ، وا ، ج : ايلغرونه] و- ايلغار

**ایل غېل** :-(ايل + غي + لْ ) [ اف : پ (قاموس) ص، مذ] ګډ وډ ، خلط ملط ، باغي او فرمانبردار ۔

**ایلنه** :-(اي + لَ + نَه ) [ پ ( ب : خ) اس ، مذ ] وېلنے ، پودينه ، ځنګلي پودينه

**ایل یاغي** :-(ايل+يا+غيْ ) [ پ (خ) اس،ص ] مطيع او باغي ، ايل غېل۔

**ایلم** :-(ايْ + لَ + مْ ) [ پ ، اس ، معر ، مذ ،وا] (۱) د بنبر په علاقه کښې د يو غر نوم۔ متل : '' چېرته ايلم چېرته دوه سرې'' (۲) په شام کښې د يو غر نوم۔

**ایلم ذیلم** :-( ايلم + ذي + لَ +مْ ) [ پ (سو) اس ، مذ ] (۱) د ماشومانو په يوه قيصې کښې د ګيدړ د دوو بچو نومونه چې هغه د يوې جينۍ نه پېدا شوي وو۔ (۲) د سوات او د بنبر په برېد د دوو غرونو نومونه۔

**ایلول** :-(اي + لْ + وَلْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] ايل کول ، په قبضه کښې راوستل ، د حکم لاندې کول ، روږدې کول۔

**ایلونګ** :-( اي+لَ+وَ+نْ+ګْ )[ اف: پ (قاموس) حمص] ايلونه ، روږدې کونه ، عادتي کونه، دحکم لاندې کونه، ښکېلونه ، اموخته کونه

**ایلونه** :-(اي + لَ + وَ + نَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ــ ايلونګ

**ایلوونکے** :-(اي + لَ + وُوْ + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع مذ ،وا ، ج : ايلوونکي ] ايل کوونکے ، په قبضه کښې راوستونکے مطيع کوونکے ، تابع کوونکے ، آموخته کوونکے ، ښکېل کوونکے۔

**ایله** :-(ايْ+ لَه ) [ اف : پ (قاموس) ص ] (۱) د خپل سر مخ خاوند ، ازاد ، د بند نه خلاص ، خوشکے ، ليه۔ (۲) بې قدره ۔

—— **کول** :- مص تر ، مت۔ ازادول ، خلاصول ، د بند نه ويستل ۔ لکه : ''شهنشاه جلال الدين اکبر د بنديانو د ايله کولو حکم اوکړو''

—— **کېدل** :- مص تر ، لا۔ ازادېدل ، خلاصېدل۔

—— **ګډېدل** :-( اف ) اص ۔بې مطلبه او بې تپوسه په خبرو کښې ځان ګډول ، بې تپوسه خبرې کول ، مامه شمېره درګډ يم۔خامخا

**ایله**:-(ايْ +لَه ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ] محض ، بس ،دومره ، لږ ،دغه، هومره ، ايله شان ، لکه : ''ستا ايله دغو نه د لاسه کېدل '' (قاموس)

**ایله بیله** :-( اص ) (۱) د ''ايله''سره چې ''بيله''يوځاے شي نو د تاکيد معنې پېدا کوي۔لکه: '' ايله بيله تا دا اووے'' (۲) کم نه کم ، ډېر کم ۔

**ایله په بانه** :- اص۔په لږه بهانه ، په معمولي بانه۔

**ایله په بیله** :-( ب : خ ) اص۔په مشکل سره ، په ګرانه ، لکه : ''ايله په بيله تردې ځاے راؤرسېدم ''۔

**ایله جاري** :-( ايله + جا+ رې ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] (۱)قومي عسکر ، مليشيا (۲) ګډه وډه ، غُنډه ، چې د يو صنف خلک نه وي ، ښځې نر۔

**ایلې** :-(ايْ + لَ + ی ) [ پ ، اس ، مؤ ] (۱) مرغابۍ

**ایلې دورې** :-(اص ) اخوا دېخوا ، دالې دورې۔

**ایلی** :-(ايْ + لَی ) [ پ (سو) اس ، مذ] د ورو لويه ، چې په اوبو کښې په غوپو يو بل نيسي ، ايلې۔

**اېلي** :-( اي + لي ) [ پ (ظفر) ص ، مؤ ] فرمانبرداري [ اطاعت ، غاړه کښېښودنه ، تن کښېښودنه ، تابعداري۔

—— **کول** :- مص تر ۔ غاړه کښېښودل ، تن کښېښودل ، فرمانبرداري کول ، اطاعت کول ، تابعداري کول۔

**اېلېدل** :-(اي + لي + د + لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص لا] غاړه کښېښودل ، اېل کېدل ، حکم منل ، تسليم کېدل ، تابعداري کېدل

**اېلېدنګ** :-( اي + لي + دَ + نْ + ګ ) [ اف : پ ( قاموس) حمص ] اېلېدنه ، غاړه کښېښودنه ، اېل کېدنه ، تسليم کونه ، تابعدار کېدنه۔

**اېلېدنه**:-(اي+ لي + د +نَه ) [ اف، پ (قاموس) حمص] و ــ اېلېدنګ

**اېلېدونکے** :-( اي + لي + دُو + نْ + کے ) [اف: پ (قاموس) اس، فا ع مذ و وا ، ج : اېلېدونکي] اېل کېدونکے،غاړه کښېښودونکے،حکم منونکے،تسليم کوونکے ، مسخر کېدونکے ، تابع کېدونکے ، قابو کېدونکے ، په لاس کښې راتلونکے۔

**اېلېده** :-(اي + لي + دَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ــ اېلېدنه

**اَیم** :-(اَ + ي+ مْ ) [ پ (ب : خ) کلمه ] دايم ، ، دغه يم ، زۀ دلته يم هائې يم ، اے يم ، ايې يم ، هې يم۔

**اِیم** :-(ايْ + مْ ) [ پ (بنو ، وز) ص ، مذ (مؤ ، وا، ايمه ، ج : ايمې) ] اوم ، کچه ، ناپخته۔

**ایم** :-(اي + م ) [ انګ ، اس ، مذ ] شست ، ششت

—— **کول** :- مص تر ، مت۔شيش يا شست اخستل ، ششت لګول ، نخښه په زړې کښې راوستل۔

—— **کېدل** :- مص تر ، لا۔شيش يا شست لګېدل۔

**ایما** :-(اي+ما ) [ پ ،(وز+مر ) صيغه متکلم ] زما ،دما ، ايمو ، دے مو ۔

**ایما** :-(ايْ + ما ) [ ع ، اس ، مؤ ] (۱) اشاره ، کنايه ، غمزه (۲) حکم ، فرمان ، منشا (۳) لمځه ، د چا په ګوته د چا په اشاره۔

**ایمال** :-( اي + ما + لْ ) [ پ (با) اس ، مذ ] د واورې لوے غر چې راپرېوزي ، ددې اثر تر لسو ميلو پورې محسوسېږي۔ګلېشير

**ایمان** :-(ايْ+ ما + نْ ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : ايمانونه ، ايمونونه ، ايمونينه ] لُغ : يقين۔اص : عقيده ، اعتقاد ، مذهب

—— **بې ایماني** :-(اص ) رښتيا دروغ ، حق ناحق

—— **په ځاے کول** :-( اص ) (۱) نيت رغول ، عقيده سمول ، اراده درستول ، په نېغه او حقه لار روانېدل (۲) ايمان تېرول ، بهادري کول ، تُوره کول (۳) خوشحالول ، د چا تسلي کول۔

—— **په ځاے کېدل** :-( اص ) (۱) نيت رغېدل ، عقيده سمېدل ، اراده درستېدل (۲) ايمان تېرېدل۔

—— **تېر که** :- اص ۔ (۱) توره اوکړه ، بهادري ښکاره کړه (۲) حق اووايه ، رښتيا اووايه ، ايماني خبره اوکړه۔

—— **تېرول** :-( اص ) (۱) ايماندار مړ کېدل ، د ايمان سره بل جهان ته تلل ، مسلمان مړ کېدل (۲) توره کول ، بهادري کول (۳) حق وئيل ، رښتيا وئيل ، صفاخبره کول۔

—— **خرڅول** :-(اص ) بې ايماني کول ، دروغ وئيل ، د خپلې فائدې دپاره حق پټول ، د دنياوي ګټې دپاره خپل اخرت خرابول ، ايمان زيانول ، ناحقه وئيل۔

—— **دې روزي شه** :- جمله دعائيه ۔ ايمان دې نصيب شه ۔ ايمان دې سلامت شه ۔ خداے تعالٰی دې امان درکه ، ايماندار شې ۔ ددې دنيا نه په امان کښې تېر شې ، ديانتدار شې ، رښتينے شې۔

—— **دې سلامت شه** :-( کلمه ) و ـــ ايمان دې روزي شه۔

**ــــ دې نصیب شه** :-(کلمه) وــــ ایمان دې روزي شه.

**ــــ راوړل** :-(اص) مسلمانېدل، اسلام قبلول.

**ــــ زیانول** :-(اص) وــ ایمان خرڅول.

**ــــ سلامت وړل** :-(اص) ایماندار مړ کېدل، مسلمان مړ کېدل، په ایمان کښې د دنیا نه تېرېدل، د سوچه ایمان سره مړ کېدل.

**ــــ لرل**:-(اص) پخه او حقه عقیده لرل، پوخ یقین لرل، ایمان ساتل

**ــــ نۀ تېرول** :-(اص) (۱) رښتیا نۀ وئیل، دروغ وئیل، حق پټول (۲) توره نۀ کول، په جنګ کښې په شا راتلل، بې غېرتي کول

**ــــ ئې په ځای دے** :- اص (۱) عقیده ئې ښۀ ده. د مسلمانۍ په لار روان دے (۲) ویرېدونکے او ډرن نۀ دے (۳) تکړه دے، بېدار دے، تیار دے.

**په ایمان** :-(اص) ایماني، په ایمان سره، والله، په رښتیا، بې تپوقو

**په ایمان قسم خوړل** :-(اص) د ایمان په سر لوړل، د مذهب قسم پورته کول.

**په ایمان کښې خلل** :-(اص) په ایمان کښې زیان، په ایمان کښې کمي، بې ایماني.

**په ایمان وئیل** :-(اص) ایماني خبره کول، حقه او رښتینې خبره کول دروغ نۀ وئیل، سپینه خبره کول، قسمیه وئیل، حلفیه وئیل.

**تر ایمان تېرېدل** :-(اص) بې ایماني کول، ناحقه وئیل، دروغ او ناروا وئیل.

**دایمان تلل** :-(اص) بې ایمان کېدل، مسلمانۍ نه وتل،

**دایمان خېر غوښتل** :-(اص) د ایمان د سلامتۍ دعا کول،

**دایمان تاوان** :-(اص) د ایمان زیان، د ایمان نقصان.

**د ایمان تکے** :-(اص) ایماني خبره، رښتیا خبره، حقه خبره، سپینه خبره، پاکه خبره، درسته خبره، روغه خبره، سوچه خبره، صحیح خبره

**دایمان ټوټه**:-لُغ- د ایمان تکړه- اص (۱) ایماندار سړے، پوخ مسلمان (۲) تورزن، بهادر، جنګیالے، غېرتي (۳) نر، صاف ګو، سپین ډاګے، په پښتو ولاړ.

**دایمان زیان** :-(اص) وــــ د ایمان تاوان.

**دایمان نخښه** :-(اص) د ایمان علامه، د مسلمانۍ نخښه.

**ایمان دار**:-(ایمان + دا + رْ یا ایمان دور) [ فا تر، اس، ص، مذ، وا، ج: ایمانداران (مؤ، وا: ایمانداراه، ج: ایمانداري، ایمان دورې) ] (۱) مسلمان، چې ایمان لري، چې عقیده ئې حقه وي په حقه لار روان (۲) حق ویونکے، رښتونے (۳) بهادر، تورزن (۴) محنتي، خواري کښ (۵) دیانتدار، اتباري (۶) وفادار (۷) صاف زړے، تګي تپوري نۀ کوونکے.

**ایمان داري** :-(ایمان + دا + ري) [فا، ص، مؤ، وا، ج: ایمانداري] رښتین والے، دیانتداري، مسلماني، د عقیدې پوخ والے، د مذهب پابندي، حق ګوئي.

**ایماني** :-(ایْ + ما + ن + يْ) [ فا تر، ص ] (۱) په ایمان، د ایمان سره (۲) حقه، رښتیا

**ــــ خبره** :-(اص) رښتیا خبره، حقه وینا.

**ــــ وینا** :-(اص) وــــ ایماني خبره

**اي ماهې** :-(اَي + ما + هې) [ اف : پ (قاموس) ص، مذ] ماشوم په خوبۍ کښې په داسې صورت نیول چې سر ئې په زنګون وي او بیا هغه خوځول را خوځول- او ورسره ورسره په خولۀ څۀ وئیل.

**ــــ کول** :-(اف) ماشوم په خوبۍ کښې خوځول را خوځول.

**ایمره** :-(اي + م + رَه) [پ (بنو) ص] دېمره، دومره پورې، دغه وخته پورې، هومره، تر هغه.

**ایمل خان** :-(اي + مَ + لْ + خا + نْ) [پ، اس، معر، مذ، وا] یو لوے پښتون مشر تېر شوے دے.

**ایمن** :-(اي + مَ + نْ) [پ (وز) ص] امن، پناه، حفاظت.

**ایمنول** :-(اي + مَ + نَ + وَ + لْ) [پ (وز) مص مت ج امن ورکول، پناه کښې راوستل، حفاظت کښې ساتل.

**ایمنېدل** :-(اي + مْ + نې + دَ + لْ) [پ (وز) مص لا] امن کښې کېدل پناه اخستل، حفاظت کښې راتلل.

**ایمن** :-(ايْ + مْ + نْ) [اف : پ (قاموس) ص، مذ (مؤ : وا : ایمنه، ج: ایمنې) ] قلار، دلاسه، خاموشه، د ژړا نه پټۀ خولۀ، اکثر د ماشومانو دپاره استعمالېږي- لکه: "هلک ژاړي ایمن ئې که"

**ــــ کول** :-(اف) ماشوم دلاسه کول، قلارول، پټه خولۀ کول، غلے کول چُپ کول.

**ــــ کېدل** :-(اف) د ماشوم دلاسه کېدل، ژړا بس کول، چپ کېدل قلارېدل، پټه خولۀ کېدل، غلي کېدل.

**اَیمن** :-(اَے + مَ + نْ) [ع : پ (ب، خ)، ص، مذ] موړ، خوشحال، په خېټه ډک- خوش قسمته، ازاد، په تسله.

**اِیمنتوب** :-(ايْ + مَ + نْ + تو + ب) [اف : پ (قاموس) ص، مذ] ایمنوالے، دلاسه، د ژړا نه ارام، قلاري، پټه خولۀ کېدل، غلي کېدل، صبر، تسلي، خاموشي.

**اِیمنوالے** :-(ايْ + مَ + نْ + وا + لے) [اف : پ (قاموس) ص، مذ] وــ ایمنتوب

**ایمنول** :-(ايْ + مَ + نْ + و + ل) [اف : پ (قاموس) مص مت] ماشوم دلاسه کول، د ژړا نه قلارول، تسلي ورکول، غلي کول، چپ کول.

**ایمنونګ** :-(ايْ + مَ + نْ + وَ + نْ + ګ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] ایمنونه، د ژړا نه چپ کونه، قلارونه، پټه خولۀ کونه.

**ایمنونه**:-(ايْ + مْ + نْ + و + نه) [اف : پ (قاموس) حمص] وــ ایمنونګ

**اِیمنووُنکے** :-(ايْ + م + ن + وُو + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس، فا ع، مذ، وا، ج : ایمنووُنکي ] ماشوم دلاسه کوونکے، قلاروُونکے، تسلي ورکوونکے، پټه خولۀ کوونکے، ژړا نه خاموشه کوونکے، غلے کوونکے، چپ کوونکے.

**ایمنېدل** :-(ايْ + مْ + نې + د + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] دلاسه کېدل، د ژړا نه پټه خولۀ کېدل، قلارېدل، په ارام کېدل، چپ کېدل- غلے کېدل.

**ایمنېدنګ** :-(ايْ + م + نې + دَ + ن + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] ایمنېدنه، د ماشوم د لاسه کېدنه، د ژړا نه چپ کېدنه، قلارېدنه، د ژړا نه په آرام کېدنه، غلي کېدنه.

**ایمنېدنه**:-(ايْ + م + نې + د + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] وــ ایمنېدنګ

**اِیمنېدُونکے** :-(ايْ + م + نې + دُوْ + نْ + کے) [اف : پ (قاموس) اس، فا ع، مذ، وا، ج : ایمنېدونکي] دلاسه کېدونکے، د ژړا نه په ارام کېدونکے، چپ کېدونکے، غلے کېدونکے.

**اِیمنېدۀ** :-(ايْ + م + نې + دۀ) [اف : پ (قاموس) حمص] ایمنېدنه، د ماشوم په خپله د ژړا نه خاموشه کېدنه، پټه خولۀ کېدنه، دلاسه کېدنه، ژړا پرېښنونه.

**ایمون** :-(اي + مو + نْ) [پ (وز) اس، مذ، وا، ج: ایمونه] وــ ایمان

**ایمون دور** :-(ایمون + دو + ر) [پ (وز) اس، ص، مذ، وا، ج: ایمون دوران، (مؤ، وا: ایمون دوره، ج: ایمون دورې) ] وــ ایمان دار

**ایمه** :-(اي + مَه) [پ، راورټي، اس، مؤ، وا، ج : ایمې] د بادشاه یا سردار د طرف نه د انعام په ډول په کمه کرایه اجاره ورکړې شوې مزکه، اجاره، جاګیر، دوتر، سپری، برګری.

**ایمه دار** :-(ایمه + دا + ر) [پ (راورټي) اس ص، مذ، وا، ج : ایمه داران، (مؤ، وا: ایمه داره، ج: ایمه دارې) ] اجاره دار، جاګیر دار، چې چا ته د انعام په ډول مزکه ورکړے شوې وي.

**ایمني** :-(اي + مَ + نَيْ) [پ (ب، خ) ص، مؤ] خوشحالي، مړه خېټه.

**اِين بِين** :-(ايْ + نْ + بَي + ن) [ پ (مر) ] دغه شان ،ښخي دغسې،بعينه ،سُکُټ داسې

**اِښترې پېښترې** :-(ايِ+ نْ + ت + رې + پې + نْ + ت + رې) [ پ ، اس ، ص ] اينتېي پېښتېي ، چل ول.

**اِښتېي پېښتېي** :-(ايِ + نْ + تې + پې + نْ + تې) [ پ ، اس ، ص ]و ـــ اينترې پېښترې.

**اينجڼ** :-(ايْ + ن +جَ+ڼْ) [ انګ،انجن ، اس ، مذ ، وا ، ج : اينجړونه] اينجڼ ، مشين ، انجن.

ـــــ **پينجڼ راويستل** :-(اص) کولمې راوستل ، څوک په ګېډه کښې په دا شان په تېرهٔ څيز وهل چې کُولمې ئې باهر ته راوځي.

**اينجړي** :-(اي + نْ + جَ + ړي) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : اينجړيان] د اينجڼ چلوونکے ، ډرائيور.

**اينجنان** :-(ايْ + نْ + جَ + ن + ړا+ نْ) [ پ (وز) اس ، مذ ] د تک سُور رنګ کانړے ، وارهٔ ئې اوسولوي او په لاسونو ئې لګوي.نو لکه د نکريزو رنګ ورکوي.

**اينجه** :-(ايْ+نْ+جه)[اف :پ (قاموس) اس،مؤ] د بوډۍ (زړې) غوا غوښه

**اينځر** :-(ايْ + نْ + دْزَ + رْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : اينځران ] اينځر اينزر ، طغو (بنو) د اينځرونه ، انجير.

**اينځر ګل** :-(اينځر + ګُ + لْ) [ پ ، اس ، مذ ] (۱) د اينځر د ونې ګل چې عموماً نه وي (۲) اص : ناياب څيز ، هغه څيز يا شے چې موندل ئې ګران وي.هغه څوک چې ملاوېدل ئې ګران وي.لکه:" فلانے خو د اينځر ګل دے "(۳) د پښتنو يو عام نوم.

**اينځې** :-(ايْ + نْ + دْزَ + ي) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] د وړې نه جوړه لوپټه ، پشمين شال.

**اينچک پينچک** :-(اي + نْ + چَ + ک + پيْ + نْ + چَ + ک) [ پ (سو ، ص] کېچ مکېز ، اوښي پوښي ، ناز نخرې.

**انداره** :-(ايْ + نْ + دا + ره) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اينداري ] هنداره ، آئينه ، آئين ، ووئينه ، شيشه.

**ايندرور** :-(ايْ + نْ + دْ + رو + رْ) [ پ ، اس،مؤ،وا ، ج : ايندريندې] اندرور ، نندرور ، نندرېر ، د خاوند خور ،

**اينده** :-(ايْ + ن + ده) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : اينديان] انډر ، مېنده ، ناخصي ګډ يا بل څناور ، ابغر.

**اينده** :-(ايْ + نْ + ده) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : ايندې] يو ګوټ ، يو غرپ ، يوه خولهٔ ، يوه تينګۍ ، په يوه ساه څښل بې دمې څښل، لکه : "په يوه انده ئې وڅښل".

ـــــ **وهل** :-(اف) اص.يو څيز ډېر زيات څښل.

ـــــ **کول** :-(اف) په يو ساه څښل ، يو ګوټ کول ، يو غرپ کول.

ـــــ **کېدل** :-(اف) په يوه ساه څښل کېدل ، يوه تينګۍ کېدل ، يو ګوټ کېدل ، يو غرپ کېدل.

**په يوه اينده څښل** :-(اف) مح.په يوه ساه څښل ، دمه په کښې نهٔ کول ، يوه تينګۍ ورکول ، په يو ځل څښل ، يوه اينده کول.

**ځان يوه اينده کول** :-(اف) مح.ځان آراسته کول ، ډول سنګار کول ، ځان جوړول.

**يوه اينده کول** :-(اف) اص.و ـــ په يوه اينده څښل.

**اِينده**:-(ايْ + نْ + دَه) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ] يو قسم د شړشمو په شان تخم چې تېل ترې نه وباسي ، جمامه ، جميا ، مندو

**اينده** :-(ايْ + نْ + دَه) [ پ (وز) اس ، مؤ ، وا ، ج : ايندې ] دکه ، ديکه ، ټېله ، لکه : "يوه اينده مې ورکړله"

**اينده توب** :-( اينده + تو + ب ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ] اينده والے ، انډرتوب ، د څناور هغه حالت چې لاخصي شوے نهٔ وي.

**اينده والے** :-(اينده+ وا+ لَے) [اف، پ (قاموس) ص، مذ] و ــ اينده توب

**اينديا** :-(ايِ + نْ + د + يا) [ پ (مسعود) اس ص ] د باهر طرف نه. لکه : "اينديا جندره پسې والې دو" ( يعني د باهرطرف نه ورپسې جندره وهلې ده)

**اينډه** :-(ايِ + نْ + ډَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اينډې ] د کوهاټ ، بنوں او ډېره اسماعيل خان د پښتنو او غېر پښتنو يوه لوبه ده. کونۍ ،کونلي (ب ، خ) انډوخر ، تتي.

**اينډزن** :-(اينډ + زَ + نْ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا] اينډه کوونکے ، لوبغاړے ، لبغاړے ، لبزن.

**اينډو سره پينډې وي** :- مح.هغه څوک چې د اينډې لوبه کوي نوګڼ مېلمانهٔ به تېره وي.يعني د ډېرو کسانو د خوراک څښاک انتظام به کوي.

**اينډې منډوله** :-(اي + نْ + ډي + مِ + نْ + ډو + لهٔ) [پ (سو) اس ص ]بې غمه،بې فکره،بې پروا ،هغه څوک چې ځان د هېڅ نه نهٔ خبروي

**اينر** :-(ايْ + نَ + رْ) [ پ (وز) اس ، مذ ، وا ، ج : اينرونه ، اينرينه ] هُنر ، اينار (بنو) اوستکاري ،

**اينر مند** :-(اينر + مَ + نْ + د ) [ پ (وز) اس ص ، مذ، وا (مؤ وا : اينرمنده ، ج : اينرمندې) ] هُنر مند ، اوستکار ، اينارمند.

**اِينې** :-(ايْ + ڼ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ( مؤ. وا: اينه ، ج: اينې) ] کمزورے ، مانده ، تپ ، بې طاقته ، ډنګر ، ناتوان.

**اِينې** :-(ايْ + ڼ) [ پ ، اس ، صو] د خرهٔ اواز ، جر.

**اِينې څينې** :-(ايْ + نې + څْس + ي + نې) [ پ (بنو) اس] انې بانې ، اينګړې دينګړې

**اينکے** :-(اي+نْ+کَے) [ پ،اس،مذ ، وا ، ج : اينکي يا اينکيان مؤ : وا: اينکۍ ] هغه سرے چې مورنۍ ژبه ئې اينکو وي.اندکے ، هندکے.

**اينکې** :-(اي + نْ + کې) [ اف : پ (قاموس) اس، ص ، مذ] د ناوې ژړا چې د سرودلو په وخت کوي.انکې.

**اينګ** :-(اي+نْ+ګْ) [ اف : پ (قاموس) ص،مذ ] د کارمينه ، شوق ، تلوسه

ـــــ **درلودل** :-(اف) د کار کولو شوق لرل ، مينه لرل ، تلوسه لرل

**اينګ** :-(ايْ + ن + ګ) [ پ،جمع متکلم] مونږ ، موژ ، مينږ ، موګ ، مينګ

**اينګا** :-(ايِ + نْ + ګا ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مؤ] د نوي پيدا شوي ماشوم ژړا ، رينګے.

**اينګاټ** :-(ايِ+نْ+ګا+ټ) [ پ (وز) ص،مذ] اونګۍ،رينګې،رينګا ،سينکاره

**اينګړې دينګړې** :-(اي + ن+ ګ + ړې) [ پ ( ب ، خ) اس ] انې بانې ، اينې څينې، لکه : "هسې اينګړې دينګړې مه کوه".

**اينګه** :-(ايْ+ن+ګه) ج اف : پ (قاموس) اس،مؤ،و،ج: اينګې] و ـــ انګه.

**اينګه** :-(اي + نْ + ګه) [ پ (ظفر) اس ، مؤ ، وا ، ج : اينګې ] يو قسم کدالۍ ( چارۍ) چې ورته پړے اچوي ، کراه (ګن)

**اېننه** :-(اي + نْ + ن + نَه ) [ پ (وز) اس ، ظرف ] دننه ، اندر ، لکه:"اے ننه ورشه" (دننه راشه)

**اينه** :-(اي+نَه) [ پ ، اس،مؤ،وا ،ج : اينې ] انه،ينه ، ځيګر ، جګر ، آئينه

ـــــ **پخېدل** :-( ظفر) لُغ : ځيګر پخېدل ، اص : اينه خوينېدل ، ډېر کړاک تېرېدل، ډېر مصيبت يا تکليف تېرول.

ـــــ **پرپوس**:-(اص) اينه او پرپوس ، ينه او شرے ، ځيګر او سږے ، لرمون

ـــــ **پرسېدل** :- لُغ :اينه ډډېدل،ينه ټنډېدل اص: ډېرتنګېدل، کړېدل اينه،پولۍ کېدل لکه : " د فلاني نه مې اينه پرسېدلې ده ".

ـــــ **پولۍ کېدل** :-(اص) و ـــ اينه پرسېدل.

ـــــ **پرېخول** :- لُغ : ځيګر پرېخول ، اص : زړهٔ ته آرام رسول.

ـــــ **تناکې کېدل** :- لُغ :په اینه دانې ارختل ـ په ینه نونې راختل ، اینه پولی کېدل،اص: زیات کړان رسېدل، ډېرکړېدل، ډېر تکلیف رسېدل ـ
ـــــ **خوړېنېدل** :-(ظفر) و ــــ اینه پخېدل ـ
ـــــ **سړې** :-(اس ، مو) اینه او پړپوس ، ینه او سڑے ، لړمون ـ
**اَېنه** :-(اې + نه) [فا : ائینه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : اینې] اینه ، اېنه ، ائینه ، ائین ، ایندارہ ، ښیښنه ، شیشه ، وینا ، وینه ـ
ـــــ **په لاس کښې ورکول** :- لُغ : اینه (ښیښنه) په لاس کښې ورکول ، اص : چا ته خپل حقیقت ښئل ، اینه ښئل ـ
ـــــ **ښئل** :-(اص) و ــــ اینه په لاس کښې ورکول ـ
ـــــ **کښې کتل** :- لُغ : په ائینه کښې مخ کتل ـ اص : د خپل ځان اصلیت یا حقیقت معلومول ـ
ـــــ **کښې مخ وګوره** :- مح ـ لُغ : ائینه کښې خپل مخ اوګوره ـ اص :- د خپل ځان اصلیت معلوم کړه ـ
ـــــ **مخ ته نیول** :-مص لا ـ ائینه کتل ، ائینه کښې مخ کتل ،مص مت :- چاته ائینه ښئیل ـ
**صفا اینه** :-(اس ص) هغه ائینه چې مخ په کښې ښهٔ او روڼ ښکاري ـ
**ایواد** :-(اِیْ + وا + دْ) [اف: پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ،ج: ایوادونه] هواد ، هېواد ، وطن ، مملکت ، لرې وطن ـ
**ایواځې** :-(اي + وا + دِزْي یا جِي) [اف : پ (قاموس) ص] یوازې ، ایواځې ، نویاجې ، یو ، ګُشتائي ، ګشه ، بېل ، تن تنها ـ
**ایواځې** :-(ايْ + وا + دزْې) [پ ، ص] و ــــ ایواځې ـ
**اَیوان** :-(اَے + وا + نْ) [پ ، فا ، حېوان ، اس ، مذ ، وا ، ج : اَیوانان، (مؤ،وا ،ایوانه ، ج : ایوانې یا ایواناني)] (۱) لُغ: ځناور ځاروے ، حېوان ـ اص : کم عقل ، بې وقوف ، نادان ، احمق ، ناپوهه (۲) (اف) ماشوم هلک ـ
**اِیوان** :-( ايْ+وا+نْ ] ع،اس،مذ،وا،ج : ایوانونه ] لُغ:لویه کمره،لوے هال،اص (۱) شاهي محل یا دربار (۲) مجلس قانون ساز ، پارلیمان

**اَیوب** :-(اَ + یُو + بْ) [ع ، اس معر ، مذ] (۱) د یو پېغمبر نوم ، حضرت ایوب علیه السلام (۲) د یو مشهور صحابي نوم ، حضرت ایوب انصاري رض (۳) د مسلمانانو یو عام نوم ـ
ـــــ **زي** :- لُغ : د ایوب اولاد ـ اص : د پښتنو د یو خېل نوم ـ مذ : ایوب زے ، مؤ : ایوب زی
**ایوبوي** :-(اَ + یو + بُو + ي) [اف : پ (قاموس) مذ] په څهٔ څیز اکتفا ، څهٔ څیز بس ګڼل ، په څهٔ څیز بسنه ، بس بسیار ګڼل ـ
ـــــ **کېدل** :-(اف) په څهٔ څیز مړېدل ، اکتفا کېدل ، تسلي کېدل ، صبرېدل ، لکه : "په دې ډودۍ ئې ایوبوي نهٔ کېږي"
**ایوک** :-(اَ + یو + کْ) [پ (خل) ص ، مذ] ګزګ ، د زخم خرابېدل ، زخم کښې نو پېدا کېدل ، کزیک
ـــــ **کول** :- مص تر ـ ګزک کېدل ، ګزیک کېدل ، د زخم نُو کول ـ
**اِیوه** :-(ايْ + وَهْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : ایوې] یوه قُلبه ، ال (هَل) یوې
**اِیوي** :-(ايْ + وِيْ) [پ ، اس ، وا] و ــــ ایوه ـ
**اِیهام**:-(اِيْ + ها+ مْ) [ع ، اص] د علم عروض یو صنعت دے ـ شاعر په خپل کلام کښې داسې ټکے استعمالوي چې دوه معنې ترې نه خېژي ـ
**اِیهـهَا** :-(ايْ + هْ + هَا) [اف : پ (قاموس) کلمه] د خوشي او خوشحالی کلمه
**اي هې** :-(اې + هې) [اف : په (قاموس) د تعجب کلمه] د حېراني او تعجب په وخت دا کلمه بې ساخته د خولې نه اوزي ـ
**ایېل** :-(ا+ یې + لْ) [اف : پ (قاموس) ع : عیال ، اس ، مذ] ټبر ، وارهٔ زارهٔ ، وارهٔ زاګهٔ ، کهٔ ، کورنی ، ال اولاد ـ
**اي یم** :-(اَي + يَ + مْ) [پ (خ) اس ، اش] و ــــ ایم
**اَیین** :-(ا+ یي + ن) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] ژوروالے ، تل
ـــــ **ته لوېدل** :-(اف) اص ـ ډېرژورتلل،تل ته پرېوتل،تُوره تر اډوکي رسېدل ـ
ـــــ **تر ننوتل** :-(اف) اص ـ ډېر ژور تلل ، ډېر کښته پورې تلل ، د چاقو یا پېش قبض په یو څیز کښې تر موټې (دسته) پورې ننوتل ـ

◈◈◈

# آ

آ:- (اَلِفْ ، اَلِپْ) (حرف ، مذ،وا ، ج : الفونه ، الفه ، الپه) (۱) د پښتو ، عربۍ ، فارسۍ او د هغه نورو ټولو ژبو د الف ، ب د پټۍ ورمبے توری چې رسم خط ئې د عربۍ نه اخستے شوے دے.د استعمال په لحاظ د الف دوه قسمه دي : متحرک (الف ممدوده او الف مقصوره) او ساکن.

(الف) متحرک :-د یولفظ په سر کښې بغېر د اعرابو او حرکاتو لکه مد (~) ، زېر(ـِ) زور (ـَ) او پېښ (ـُ) د مد نۀ خپله څۀ اواز ورکوي لکه د "اوښتل " د اَلف ممدوده او د "اِشاره" ."اس" "اوبۀ" .د الف مقصوره نه چې حرکات لرې کړے شي نو الف هېڅ اوازنۀ شي ورکولے . خو د عربۍ د قاعدې مطابق (په ډېر استعمال سره) یو لفظ چې د الف نه شروع کېږي او څۀ حرکات نۀ لري نو عام طور سره الف مفتوح (اَ) لوستے شي . (ب) ساکن الف :- د یو لفظ په مېنځ یا اخر کښې چې الف بې د اعرابو او حرکاتو د مـدد نه څۀ قدر د الف ممدود (آ) په شان ولاړ اواز ورکوي.لکه :-لار ، راوتل ، بیا ، ما ، او دا ، کښې (۲) چې د دوؤ نومونو (اسماؤ) په مېنځ کښې د عطف د حرف په طور استعمال شي.نو د هغې نه تسلسل یا اتصال ظاهرېږي.تسلسل لکه:- د ډز نه ډزاډز.او اتصال لکه :- د مخ نه مخامخ. (۳) د اکثرو نومونو په اخر کښې د تانیث علامه ګڼلے شي لکه :- رڼا ، ملا ، شا ، بېدیـا او داسې نور . (۴) د مصدر نه اسم جوړولو دپاره د مصدر علامه یعني اخري ټکے لرې شي او د هغۀ په ځاے الف ولګولے شي.لکه :- د ژړل نه ژړا ، د خندل نه خندا او داسې نور . (۵) د ځینې ټپو د لهجې د اختلاف په بنا (ه) په (ا) بدلېږي . لکه:- د هګۍ یا هاګۍ نه اګۍ.د هور نه اور او د هو نه او . (۶) دغه شان د لهجې د فرق په وجه الف په واؤ بدلېږي . لکه د لاړ نـه لوړ او د خانه نه خونه .(۷) په ځینې ځایونو کښې په زوَر بدلېږي . لکه د ماوې نه مئې، او د وایم نه وېم . (۸) چېرته زوَر په الف بدلېږي.لکه :- د طاقت نه طقات او د راتْرپ نه رَتْراپ . (۹) په ټپو ، چاربېتو او بدلو کښې د مصرعې اخري ټکے چې په زوَر سره وي.یا ئې په اخر کښې (ه) وي.نو په وئیلو کښې به دا زوَر یا (ه) په الف بدلېږي .لکه :- د حلالَوي نه په ځاے حلالوي نا (۱۰) چې د دوو لفظونو نه یو لفظ جوړوي نو د مېنځ نه الف وباسي.لکه د رانجۀ نه رنجړومه یا رجړومه.یا وُچوبه کښې د اوبۀ نه الف لرې کړے شي.(۱۱) په ځینې ځایونو کښې د "و" یا د "ي" شروع کېدونکي لفظونو په سر کښې الف ولګي.لکه :- وریځ نه اوریځ ، د یواځې نه ایواځې او داسې نور . (۱۲) په ابجدو کښې یو شمېرلے شي . (۱۳) په علم صرف کښې په طور د علت د حرف استعمالېږي . لکه :- د کُنډتون نه کُنډتانۀ ، او د ژوندون نه ژوندانۀ. (۱۴) د عربۍ د قاعدې مطابق الف په همزه بدلېږي لکه هېئت چې وئیلے شي. (هې اَت) او لیکلے شي هېئت او داسې نور. (۱۵) د عربۍ په ځینو لفظونو کښې چې په "و" او "ي" وړوکے الف ولګي نو اواز ئې د الف شي . لکه زکوة یا زکوٰة + زکات،صلوة یا صلوٰة ، صلات ، مولٰی ، مولٰے ، مولا ، لیلٰی ، لیلٰے،لیلا.یادګیرنه :-

په دې کښې د شپږم نمبر نه تر یوؤلسم نمبر پورې په شپږو واړو مثالونو کښې د الف تغیر و تبدل د څۀ مخصوصې قاعدې مطابق نۀ دے . بلکې سماعي یعني د اورېدو په بنا دے.

## الف ممدوده

آ :- (اٰ) (الف ممدوده ، الف متحرک په مد ، الف په راکښلي اواز سره ، لکه : باَ ، ما) (۱) د درد په زیاتۍ ، حېرانتیا ، افسوس ، انْړې یا د اررمې په وخت کله کله لږ ډېر د چغې په شان اواز (۲) د خطَاب یا د بللو دپاره استعمالېږي . لکه :- آسړیه ! آمحمودَ (ف) (۳) ځینې سندرغاړې د سُر د سمولو دپاره داسې اواز اوباسي . عام طور سره د رباعۍ د شروع کولو نه وړاندې د ساز سره د خپل اواز د یو کولو د پاره داسې آ ، آ ، آ کوي. (۴) د ځینې ساتلي شوي ځناورو د رابللو دپاره اواز . (۵) د وړو ماشومانو د خبرو زده کولو په وخت د وړومبۍ مرحلې اواز . لکه :- آ،با،آ، تا (۶) د فارسۍ او دعربۍ هغه الفاظ چې د الف ممد۱۲۳وده نه شروع کېږي . خو لاپه پښتو کښې مدغم شوي نۀ دي .لکه :- آب ، آش آل او داسې نور . (یادګېرنه) په پښتو کښې د ممدود الف استعمال کم دے.

آ :- (اٰ) (پ ، اس ، اش ، مذ ، مؤ ، وا ، ج) د هغه مخفف ، هاغه، آغه ، هغه.

چې پرې غم غلطوۀ شي آ درې دادي (قاسم افریدے)

یا لکه :- "آ سړے وینې ؟"

آآ :- (آ + آ ، په وزن د بابا (ح ند) (۱) په ځینې ځایونو کښې د ساتلي شوي ځناورو او مرغانو د رابللو اواز لکه "آآ" "آآ" (۲) یو غږ دے چې په آذربائجان کښې ئې د سنډا د شړلو دپاره استعمالوي. (ف : آریانا)

**آب** :- (آ +ب) (فا ، اس ، مذ ، ج ، اس ، آپَ ، آپْ ، ژند + آبْ ، پ:اوبۀ) (۱)اوبۀ

آب د سیند لاڅۀ مجال لري په تلۀ کښې (رحمان بابا)

(۲) ځلق ، پړق ، برېښنا ، لکه د مرغلرو یا د تورې.

لکه آب د زمرد خوشنما تر شي (کاظم خان شېدا)

آب تر لعلو د لاله ګلونو ډېر دے (رحمان بابا)

(۳) عزت ، آبرو ، درناوے

د مشر ورور به آب په ځاے لري (خوشحال)

(۴) نُور ، رونق ، ښکلا ، ښائست ، شویشت

څو به مخ کښې د خوبانو حُسن آب شته (سعید

(۵) حیا ، شرم ، باک

د زاهد د سترګو آب هومره په ځاے دے (خوشحال)

(۶) د اوسپنې یا د اوسپنې د وسلې اوبۀ ، کلکوالے او روڼ والے ، معمولي اوسپنې ته چې آب ورکړے شي نو فولاد ترې جوړ شي . اکثر اُستکاران چې د اوسپنې څۀ څیز جوړ کړي . نو تود تود ئې د اوبو لوښي ته ورګُذار کړي . لږ ساعت پس ئې ترې راؤباسي . دې ته آب ورکول وائي.

تبغ د اوسپنې محتاج د نرم آب دے (رحمان بابا)

(۷) خوبي ، صفت ، جوهر ، وفا

ددې دهر په یارانو کښې آب نشته (رحمان بابا)

(۸) شراب ، مئے

ازاله مې د ګرمۍ ساقي په آب کړه

سوے زړهٔ لکه بنیبنه راغلم له اوره (کاظم خان شېدا)

(۹) ویلي شوې ، د شرمه اوبهٔ شوې

له حیا دې آئینه په مخ کښې آب شوه (حمید)

(۱۰) خولهٔ (ـــ کېدل سره)

ستا په لاس کښې تازه ګل له شرمه آب شو (کاظم خان شېدا)

(۱۱) اوښکې.

د ګریانو سترګو آب سوزان آتش وي (کاظم خان شېدا)

**ـــ آخستل** :- (اص) (۱) عزت اخېستل ، د چا شرمول یا سپکول. لکه :- "فلانے د سړي آب اخېستل هېڅ نهٔ شماري" (۲) سړه شوې اوسپنه چې په اوبو کښې غوپه کړے شي نو وائي چې آب ئې واخېستو.

شېدا خپله چاړهٔ ویني په اوبو کښې

که نن واخېست دې تا نوي خنجر آب (کاظم خان شېدا)

**ـــ تلل** :- (اص) عزت تلل ، بې حیا کېدل ، بې رونق کېدل ، پیکه کېدل ، په څهٔ خبره د چا شرمېدل ، ټیټې سترګے کېدل.

**ـــ ورکول** :- (اص) (۱) اوسپنې ته اوبهٔ ورکول ، پرقول ، چنګول ، بربښول ، ځلکول ، د ګرمې اوسپنې جوړ شوے څیز د اوبو په لوښي کښې اچول (۲) عزت ورکول ، چاته په درنه سترګه کتل.

**بې آب** :- (بې + آب) (پ ، اص) بې عزته ، بې حیا ، هغه څوک چې شرم حیا نهٔ لري

بې له تانه سور په وینو شه بې آب (خواجه محمد)

**ـــ کول** :- (اص) بې عزته کول ، شرم حیا اخستل ، د چا سپکول.

**ـــ کېدل** :- (اص) بې عزته کېدل ، شرمېدل ، سپکېدل ، غورزېدل

**په آبکول** :- (اص) چاته عزت ورکول ، درناوے ورکول.

**دمخ آب** :- (اص) حیا ، شرم ، عزت ، رونق ، ښکلا ، ښائست

حق حېران یم ستا د ښکلي مخ په آب (مصري)

**آبا یا اَبا** :- (آبا ، یا ، آ + با) (ع ، اس ، مذ ، ج) (۱) پلرونه ، نیکونه تېر شوي مشران ، (۲) وا :- پلار ، نیکهٔ ، بابا

په معنٰی دے عشق د کل جهان آبا (مصري)

**آباد یا اَباد یا آبود** :- (آبا ، آ + با + د یا آبو + د) (ف ، اس ، ص ، مذ ، وا + ج ، مؤ ، وا : آباده ، ج : آبادې) (۱) جوړ شوے ، آبات ، آباد شوے ، تعمیر شوے ، هغه ځاے چې خلق په کښې وي.

بادشاهانو که قصرونه کړل آباد (رحمان بابا)

(۲) سرسبز ، په وښو ډک ډوک ، ښېرازه ، لکه : "زمونږ غر ښهٔ آباد دے"

**آبادول یا اَبادول یا آبودول** :- (آباد + وَ + لْ) (پ ، مص ، مت) جوړول تیارول ، سازول ، رغول ، مېشتهٔ کول ، آباتول ، ما :- آباد کړه ، حا :- آبادوي ، ا :- آبادوي یا آباد به کړي ، امر :- آباد کړه.

**آبادونه یا اَبادونه یا آبودونه** :- (آبا + د + وَ + نَ) (پ ، حمص) جوړونه ، مېشتهٔ کونه ، دېره کونه ، استوګنه کونه.

**آبادېدنه یا اَبادېدنه یا آبودېدنه** :- (آبا + دې + دْ ، نَ) (پ ، حمص) جوړېدنه ، مېشتهٔ کېدنه ، دېره کېدنه.

**آبادي یا ابادي یا آبودي** :- (آ + با + دي یا آ + بو + دي) (فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : آبادۍ ، آبادیانې ، ابودۍ) ابادي (۱) پرېواني ، د فصل یا وښو ډېر والے (۲) کلے بانډه ، کور کلے. لکه : ابادي مې وکړه. (۳) په یو ځاے کښې د اوسېدونکو شمار. لکه : "زمونږ د کلي ابادي درې زره ده"

**ـــ کول** :- (اص) مېنه جوړول ، کور تیارول ، کوټه جوړول ، کوډله جوړول

**ـــ کېدل** :- (اص) (۱) مېنه جوړېدل ، کوټه تیارېدل (۲) پرېواني راتلل ، د باران په کېدو فصل ښهٔ کېدل.

**آبادېدل یا اَبادېدل یا آبودېدل** :- (آ + با + دې + دَ + ل یا آ + با + دې + دَ + ل یا آ + بو + دې + دَ + ل) (پ ، مص ، لا) جوړېدل ، مېشتهٔ کېدل ، سازېدل ، څهٔ څیز اباتېدل ، په څهٔ څیز زمکه ډېره کېدل.

**آب دار** :- (آب + دا + ر) (فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج آبداران ، مؤ ، وا : آبداره ، ج : آبدارې) (۱) آب ، ځلا یا پړق لرونکے ، بربښېدونکے ، چنې کېدونکے.

د یمن یاقوت آبدار دي

که آبدار دي ستا د شونډو (خوشحال)

(۲) عزت من ، درونډ ، غوره ، څرګند ، ښکلے ، ښائسته.

په ګلونو کښې ګلاب ځکه آب دار شي (عبدالقادر)

(۳) هغه نوکر چې په فوځي مېسونو کښې د څښلو د اوبو کار ورته حواله وي.

**آب دره** :- (آب + د + رَ) (فا ، پ : آؤدره ، اس ، مز ، مؤ ، وا) لغ : د اوبو دره ، اص : (۱) د پېښور ښار نه قبلې اړخ ته یو کلے (۲) یوه دره چې د پنجشېر (افغانستان) په قطبي نمر ختیځ اړخ کښې ده. (آریانا)

**آبدس** :- (آب + د + س) (پ ، فا : آب دست ، اس مر ، مذ ، وا ، ج : آبدسونه) اودس ، اودس چار اندام

اوئې کړو آبدس نمانځهٔ ته شو تیار (نعمت الله)

**آبرو** :- (آب + رُو) (فا ، اس ، مر ، مذ ، وا) لغ : د مخ اوبهٔ ، اص : عزت ، حیا ، شرم ، پړده ، ناموس.

که له دې زمانې تېر شوې په آبرو کښې (علي خان)

**ـــ آخستل یا آخَستل** :- اص : عزت آخستل ، شرمول ، سپکول ، بې عزته کول ، شرم حیا اخستل ، لکه : "د بل آبرو آخستل څهٔ ښهٔ خبره نهٔ ده"

**ـــ بائیلل** :- (اص) په څهٔ سپک کار عزت خرابول ، بې عزته کېدل ، د خلکو د نظر نه پرېوتل ، په څهٔ خبره شرمېدل ، لکه : "هر څهٔ قبلوم ولې آبرو بائلل راته ګران دي".

**ـــ پاتې کېدل** :- (اص) عزت پاتې کېدل ، د سپکاوي نه بچ کېدل ، شرم حیا پاتې کېدل

**ـــ تلل** :- (اص) عزت تلل ، بې عزته کېدل ، شرمېدل ، په څهٔ خبره سپکېدل ، د خلقو د نظر نه پرېوتل. لکه :- "د چا په آبرو تلل مه خوشحالېږئ".

**ـــ تویول** :- (اص) (وـــ ابرو بائلل)

**ـــ توئېدل** :- (اص) (وـــ ابرو تلل)

**ـــ ساتل** :- (اص) عزت ساتل ، حیا بچ کېدل ، سپکاوي نه ځان بچ کول. لکه :- "خپل آبرو ساتل په لاس کښې دي"

**بې آبرو** :- (بې + آ + ب + رو) (پ ، اس ، ص) بې عزته ، بې شرمه ، پرېوتے ، بې حیا ، سپک ، ناکاره. لکه : "هغه بې آبرو سړے دے"

**ـــ کول** :- (اص) بې آب کول ، عزت آخستل ، شرمول ، سپکول ، حیا پړده آخستل ، بې عزته کول ، بې ستره کول.

**ـــ کېدل** :- ( اص ) بې عزته کېدل،شرمېدل،د خلکو د نظرنه پرېوتل ، بې ستري کېدل.

**آبروئي** :- (آب + رو + ئي) (فا ، اس ، مر ، مؤ ، وا) لغ ، مخ روښي ، اِص :- عزت ، شرم ، حيا

آبروئي زما د مخ ستا په ژوندون ده (خواجه محمد)

**آبشار** :- (آب + شا + ر) (فا ، (آب : اوبۀ ، شار : اوچت ځاے) (اس ، مر ، مذ ، وا ، ج : آبشارونه) اوبۀ چې د اوچت ځاے نه راپرېوځي جړوبے ، ځړوبے ، ګړونګه. زاوو ، برېرک

چې اوبۀ ئې را رواني د آبشار شي (خوشحال)

**آبلوغ** :- (آب + لو + ٹس) (ف : پ (سيند) اس ، مذ ،وا ، ج (مؤ، وا: آبلوغه ، مؤ ، ج : آبلوغې) - ځواني. يا بلوغت ته رسېدلے - په شنه شونډه هلک ، زلمونيے

**ـــ کېدل** :- ( ف ) ، اص ،ځوانېدل ، شونډه شنه کېدل ، زلمے کېدل ، بالغېدل ، بالغ کېدل ، ځواني ته رسېدل.

**آبلوغېدل** :-(آبلو+ ٹسې+دَ+ل) (اف : پ (سيند) مص ، لا) (وـــ آبلوغ کېدل) ما :آبلوغ شۀ ، حا : آبلوغېږي ، ا : آبلوغ به شي.

**آبنوس** :- (آب + نُو + س) (فا ، اس ، مذ ، پهه : اَوَنوَس ، آرامي : اب نُوسا ، يُو : ابي ناس) يوه ونه چې لرګے ئې تک تور ، ډېر کلک او درونډ وي- تسپې ، ګُلدار ډبلي او نور د آرائش څيزونه ترې نه جوړېږي.

چې په لاس توري تسپې کا د آبنوس (حميد)

**آبوئي**:- (آ+ بو + ئي) پ (مل) ، اس ، مو ، وا) ابي. ، مور، ادې ، ادکه ، لکه : "آبوئي مې کور نشته"

**آبيا يا اَبيا** :- (آ+ بي ، يا اَبْ+ يا ) (پ ، اس ، ص ، مؤ) د آس يو مخصوص چال يا رفتار چې وړاندينې او روستنې پښنه ئې په يو ځاے اخلي او هوار روان وي-سوارۀ ته تکلي نۀ وي-لکه :- " دا آس آبيا قدم لري ".

**آبيانه** :- (آبْ + يا+ نَ) (فا ، اس ، مر ، مؤ ، وا ، ج : آبيانې) اوبۀ کولو ، پښه کولو يا د اوبۀ خور معاوضه ، هغه رقم چې حکومت ئې د زميندارانو نه د اوبۀ خور د انتظام په بدل کښې اخلي - لکه :- " نن سبا آبيانه ډېره زياته ده "

**آپ** :- (آ + پْ) (پ (وز) ، اس ، مؤ،وا (ع :عفو) بخښنه ، معافي، پرېښول ، لکه : " اوس ئې آپ کړه ".

**آپرين** :-(آ + پ + ري + ن) (پ (عا) ، فا : آفرين ، د تحسين کلمه) شاباشے ، واوا ، وا ، ډېر ښۀ ، لکه :"آپرين دهقانَ ، خولې وباسه د ځانَ ".

**آپي** :- (آ +پي) (پ .،بنو) اس ، مؤ ، وا ) مسته يا نر طلبه ګيدړه ، غوبمه ګيدړه ، بڅوه (وزيري)، آپي بالو-

**آپېدل** :- (آ + پي + د + ل) (پ (وزير) ، مص لا) د آپي بڅوې بَؤ بَؤ يا غپا ، ما : آپېدله ، حا : آپېږي ، ا : وُبه آپېږي -

**آتش** :-(آ + تشْ) (فا ، اس ، مذ ، وا ، (س: هوتَ شَ ، آو: آتَر ، آترش ، پهه ، آتُر ، آتَرَش ) اور،انګار،لمبه ، سُور اور يا انګار ، سرې سکروټې يا سروټکې -

ببلتانۀ هسې آتش راباندې بل که (هجري)

**آتش بازي** :- (آ +تشْ ، با + زي) (فا ، اس ، مر ، مؤ ، وا ، ج : آتش بازۍ) لغ : آتش + اور ، بازي ، لوبه يعني د اور لوبه-اص : د ټوپک د دارو (بارودو) نه جوړ شوي څيزونه ، لکه ټوټکې ، شُرشُرۍ ، پټاخې ، توغندې ، نيچې ، ګولې او داسې نور- لکه :" د جشن آتش بازي خوندناکه وه ".

**ـــ کول** :- (اص)شرشُرۍ يا پټاخې خلاصول ، د بارودو بمونه او ګولې چلول- لکه : "آتش بازي کول ضروري وو".

**آتشک** :- (آ +ت + شَ + ک) (فا ، اس ، مذ ، ا) اوربلک ، يو موذي او د يو نه بل ته لګېدونکے مرض،چې د مريض په وجود ، ورشکو (وښکو)، ګروتُونو ، سپېړمو ، ژبه ، تالو او د وړو او لويو بولو په ځاے کښې اول دانې راوخېژي او بيا هلته خوراکي زخمونه جوړ شي - دا مرض تر څو پُشته پورې په اولاد کښې اثر کوي - لکه : "خدايه! د آتشک نه مې دښمن هم وساتې".

**آتشکي** :- (آ + ت + شَ + کي) (پ تر ، ص ، مذ ، وا) (۱) آتشک سره تعلق لرونکے (۲) په آتشک ناروغه ،د آتشک بيمار، آتشک مريض- لکه : "د آتشکي ژوندون په ضرور وي"

**آټ** :- (آ + ټ) (پ (وز+بنو) ه: هاټ ، هټ ، هټي ، اس ، مذ ، وا ، ج: آټونه ، آټينه) آټي ، دوکان ، لکه : " د آټ نه ګوره راوړه "

**آثار** :- (آ + ثا + ر) (ع ، اس ، مذ ، ج ، وا : اثر ،(خج : آثارونه) (۱) د اثر جمع ، لکه : "آثار ئې ښۀ نۀ دي " (۲) نخښې نښانې-

کانړے ډک له اوره هيڅ آثار ئې ليدۀ نۀ شي (عبدالقادر)

آه ! د پيرۍ دي ، دا آثارونه (خوشحال)

**آثار قديمه** :- (آثار + ق +دي +مَ) (فا ، (آثار+ علامې + قديمه + پخوانۍ) اص ، مذ ، ج) زاړۀ او پخواني آثار يا نخښې نښانې ، د پخوانو خلقو يا زړو وختونو کنډرې يا د آبادۍ نخښې نښانې چې د تاريخي اهميت په لحاظ ئې حفاظت کولے شي لکه : " زمونږ د يونيورسټۍ د آثار قديمه شعبې ډېره ترقي کړې ده ".

**آج يا اَج** :- (آ +ج يا اَ + ج) (پ ، ب ، خ ، وز ، بنو ، ع : حج ، اس ، مذ ، وا ، ج : آجونه ، آجينه ) حج د اسلام په پنځ بِنا کښې يو رُکن ، په شته من مسلمان په ژوند کښې يوځل مکې معظمې ته د بيت الله د زيارت دپاره تلل فرض دي-لکه : "آج مې تېر کال کړے دے ".

**آجنه يا اَجنه** :- (آ +جَنْ + ړ + يا اَ + جَنْ + ړَ) (پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: آجنې) هغه ښځه چې حج ئې کړے وي-لکه "اوس آجنه الله الله کوي ".

**آجي يا اَجي** :- (آ +جي يا اَ +جي) (پ ، ع ،حاجي ، اس، ع ،مذ ،وا ،ج: آجْيونْ ، حاجي ، چې حج مبارک ئې کړے وي-

**آجي ګل**:- (آجي + ګُل) (پ ، ب ، خ ، وز، بنو، مر) (اس ، ص ، مذ، وا، ج : اَجي ګلون) (۱) حاجي ګُل ، د حاجي دپاره د زيارتې مينې او احترام په ډول وئيلے کېږي (۲) په پښتنو کښې د سړي نوم-

**آجي ګله**:- (آجي +ګُ + لَ) (پ، ب ، خ ، وز ،بنو ، مر) اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : آجي ګُلې) اجنه ، اجي ګُله ، حاجي ګله ، هغه ښځه چې حج ئې کړے وي-دا ټکے د عزت او احترام په ډول ورته استعمالېږي-لکه : "آجي ګُله دعا درته کوي "

**آچاوه يا اَچاوه** :- (آ يا اَ + چا + وَ) پ ، امر ، مص : آچول) د اچولو کار ، د څۀ څيز د اچولو دپاره حکم ، لکه : " چائې آچاوه "

**آچول يا اَچول** :- (آ + چَ + وَ ، لْ ، يا اَ+ چَ + وَ + لْ) (اَف ، پ (سيند) مص مت) (۱) اچول ، غورزول ، تريل ، وينښتل ، لکه : "په چا تيره اچول بد کار دے " (۲) په زمکه غوزارول- په زمکه وينښتل په زمکه راخلاصول (۳) څۀ څيز کښې ځان پټول ، ځان نغښتل-لکه : "ځادر په ځان اچول په کار دي " (۴) څۀ څيز چېرته ذخيره کول ياجمع کول - لکه :"غله په ګودام کښې اچول وو" (۵) دېرې کول ، سستي کول-لکه : "کار روستو اچول ښۀ نۀ دي " (۶)په چا څۀ کار سپارل ، چا ته په ذمه کول. لکه : " په ما

ئي کار اچول مناسب نهٔ ګڼلو ـ (۷) د میعاد نه وړاندې بچے غورزول ، زیان کول ، سپیازېدل ـ لکه : " د بچي اچول وو او د ښځې مړېدل " ـ (۸) تېمنه یا تخم کرل ، لکه : "په پټي کښې تخم اچول شروع کړه " ـ (۹) لګول ، ښښتل لکه : لاس اچول ، (۱۰) پرېښول لکه : باد اچول ، ما : واچاوهٔ ، حا : آچوي ، ا : وابه چوي ، امر : واچوه ـ

**آچونه** :- (آ + چَ + و + نَ) (پ ، ب ، خ ، حمص) د اچولو کار ، څهٔ څیز غورزونه ، څادر یا بستره په کټ غوړونه ، لکه :" هلکه ! د څادرآچونه درنه هېرشو " ـ

**آچے یا آچئ ، آچئے** (آ + چ + ے یا آ + چ + ئ + آ + چ + ئے) (پ ، اس ، مذ ، مو ، وا ، ج) د کوهستان یا غرئیز نسل غوا غوئے ، دا غوا یا غوئے په قد او جوثه ورکوټے وي ـ لکه : "آچۍ غوا ډېر پۍ کوي "

**آخ یا اَخ** :- (آ + خ ، یا اَ + خ) (پ ، اس ، صوت) (۱) د مرۍ نه خراشکے ښېلولو په وخت اواز . لکه : " آخ ، تُو " ـ (۲) د غم او خوشۍ یا خوشحالۍ په وخت ناڅاپه د خولې اواز ـ

له چا بله وېنا وانهٔ ورم بې آخَ　　(خوشحال)

اخ چې لاس په لاس په دهٔ پورې دا تور شهٔ　　(خوشحال)

یا لکه :" آخ ټټېر مې یخ ! " (۳) د کُرمې خلق ئې په سندرو کښې وائي ـ لکه :"آخ لالیه ! "

**آخ تُو یا اَخ تُو** :- (آ خ یا اَخ + تُو) (پ ، اس ، صوت) (۱) د خراشکي یا د بلغم د مرۍ نه راښېلولو او توکلو آواز ، غاړه تازه کول ـ (۲) د کرکې ، وېزارۍ او د نفرت د ظاهرولو په وخت داسې اواز ایستلے شي لکه : " آخ تُو ! څومره سخا هلک ئې " ـ

ــــ **کول** :- (اص) د مرۍ نه خراشکي یا بلغم را ایستل ـ لکه :"آخ تُو کول ښهٔ کار نهٔ دے "

**آخته یا اَوخته** :- (آخْ + تَ یا او + خْ تَ) (پ ، فا : آختن ، پهه : آهختن آهېختن) لګیا ، اخته ، ګېر ، مشغول ـ

دعا به دا کړم ، آخته په آزمهٔ شې　　(خوشحال)

ــــ **کول** :- (اص) (۱) لګیا کول ، څوک په څهٔ کار لګول ، اوخته کول (۲) څوک په خپلو کښې جنګول یا ښښول ـ لکه :" ماشومان آخته کول بده خبره ده " ـ

ــــ **کېدل** :- (اص) (۱) په څهٔ کار کښې مشغولېدل ، اوخته کېدل ، (۲) جنګېدل یا ښښتل ، د یو بل سره لاس اچول ـ

**په آفت آخته کېدل** :- (اص) په تکلیف یا مصیبت کښې ګېرېدل ، په بیمارۍ یا مقدمه آخته کېدل ، دړدېدل ، کړېدل ـ

**په آپت آخته کېدل** :- (اص) (و ــــ په آفت آخته کېدل)

**آخر** :- (آ + خِرْ) (ع ، اس ص ، مذ ، وا) (۱) حد ، انجام ، انتها

خدائیګو چې آخر له ما به لوټ کاندې ګټلې　　(خوشحال)

(۲) ختمېدو ته نژدې ، مړکېدو ته نژدې وخت

وخت آخر دے په زړهٔ یاد لره خپل خدا ے　　(خوشحال)

(۳) وروستو ، آخر ، د ټولو نه پس ـ لکه : " ـــ دُر و مرجان د عبدالحمید چې آخر د شاعرانو دے " (ګلشن روه) (۴) د تعجب او حېرانګۍ په ډول ـ لکه : "آخر دا ولې ؟ "

ــــ **آخر** :- (اص) اخېر ، اخېر ته ، په اخېر ، اخرکار ، د ټولو نه روستو ، روستنۍ ، آخري حد ته نژدې لکه : "هغه آخر آخر قطار کښې زما ورور دے "

ــــ **اول** :- (اص) مخکښې روستو ، وړاندې وروستو ، په سر کښې او څټ ته ، لکه : " ـــ هم آخر اول سُنت چې د مانځهٔ دي " ـ (اخوند قاسم)

ــــ **پار** :- (اص) روستے پار ، د شپې آخر وخت ، پېشمنے ، آخره شپه ، لکه : " زهٔ به نن آخر پار روانېږم "

ــــ **ے** :- (اص) په قیامت او په دُنیا ، په دې جهان او په آخرت ، په ژوند کښې او د مرګ نه پس ، په دواړه جهانَ ، لکه : " آخر په دُنیا خوشحاله اوسې "

ــــ **تللے** :- (اص) لغ : آخر د یو ځا ے نه تلل ، اص : مړ کېدل ، ددې دنیا نه سفر کولَ ، لکه : " آخر تلل دي له دنیا نه په ارمان کښې " (رشیدالبیان)

ــــ **ته** :- (اص) په آخر کښې ، روستنۍ ، د ټولو نه روستو ، په آخر سر کښې ، شاتهَ ، بیا ، لکه : " آخر ته منکر شو "

ــــ **ځا ے** :- لغ : آخرنے ځا ے ، اص : (۱) قبر (۲) عاقبت

بل آخر ځا ے ئې جنت د ے　　(معزالدین)

ــــ **ځل** :- (اص) روستے وار ، روستۍ موقعه ، آخر وار ، تېرځل ، لکه : "آخر ځل دې خبروم "

ــــ **خوارول** :- (اص) آخرت خرابول ، بد کارونه کول ، آخري عمر بربادول ، لکه : "بدکار څهٔ د ے ، خپل آخر خوارول دي " ـ

ــــ **خوارے** :- (اص) هغه څوک چې آخرت ئې خوار وي ـ یعني د خپلو بدو کارونو په سبب دوزخي وګڼلے شي ـ خلق ئې د ښېرې په ډول وائي ـ لکه : " هغه آخر خوارے رانغو " ـ

ــــ **خوارېدل** :- (اص) (و ــــ آخرت بربادېدل)

ــــ **دا** :- (اص) آخر ، آخر کار ، غرض دا چې ، عقوبت ، لنډه دا چې ، آخر داسې وشو چې ـ

آخر دا ، فوځونو واخستهٔ رخصت　　(عبدالغفار)

ــــ **دم** :- لغ : آخره ساه ، اص : آخر ساعت ، آخر وخت ، د مرګ وخت لکه : "آخر دم پورې ئې خبرې کولې "

ــــ **دوه رکعته** :- (اص) په نمانځهٔ کښې روستني دوه رکعته ـ

فرض آخر دوه رکعته　　(معزالدین)

ــــ **زمان** :- لغ : د آخرې زمانې ، آخري ، په ټولو کښې روستو ـ اص : د حضرت محمدؐ د صفت په طور استعمالېږي ـ مسلمانان حضورؐ آخري نبي مني ، ځکه چې دويؐ په آخره زمانه کښې دنیا ته تشریف راوړے د ے ـ تر آخره به ئې نبوت چلېږي ـ او د دويؐ نه پس به بل نبي نهٔ راځي ـ

هم په دین د محمد آخر زمان یم　　(نعمت الله)

ــــ **سفر** :- لغ : وروستے سفر ، اص : مرګ ، د دنیا نه سفر کول ، د نیمګړې دنیا نه کُوچ کول ، لکه : "آخر سفر د ے له دنیا نه " ـ

ــــ **سورة** :- (اص) وروستے یا وروستنے سُورة ، د قرآن شریف آخر سورة

بل آخر سُورة چې کاندې　　(معزالدین)

ــــ **عُمر** :- (اص) د عمر آخري موده ، د بوډا توب عمر ، د زړبوډګۍ وخت ، آخري عُمر ـ

په آخر عمر خوارېږي　　(معزالدین)

ــــ **فناده** :- لغ : آخر فنا کېدل دي ـ اص : آخر مړ کېدل دي ـ آخر د دنیا نه تلل دي ـ آخر کُوچ کول دي ـ فنا کېدل دي لازم دي ـ

په ژوندون هېڅهٔ باور نشته

آخر فنا ده یاره اوکړه دیدنونه　　(ټپه)

ــــ **کېدل** :- (اص) (۱) خلاصېدل ، ختمېدل (۲) سرته رسېدل (۳) مرګ ته رسېدل ، د زنګدن وخت ، د آخري سلګو وخت ـ لکه :- " آخرکېدل دي ، آخر

کېدل دي ، مرګ ته ورتلل دي ''

**ـــ مُدا** :- (اص) ع : مُدعا ، آخرمطلب ، د خبرې لنډون ، د زړهٔ قيصه ، لکه : ''آخر مُدا دې څهٔ ده ؟ ''

**ـــ نمازپېښين** :- (اص) کوز ماسپښين،ماسپښين په قضاکېدو، د ماسپښين روستے وخت ، لکه : ''لنبکر د موژه په آخر نمازپېښين راکوز شهٔ''
(تاريخ مرصع)

**ـــ وار** :- (اص) (۱) روستے وار ، آخري وار ،آخر ځل ،کله چې لوبغاړے د تيتي ، اينډې يا کېډې په لوبه کښې آخري ځل باهر ته ووځي لکه : '' فلانې آخر وار وکړو'' (۲) روستے ګذار ، روستے ډز ـ لکه :'' هلکه ! ستا آخر وار خطا لاړ'' (۳) د اوبو آخر وار لکه : ''آخر وار ستا دے ''

**ـــ وخت** :- (اص) (۱) د ځنکدن وخت ، د مرګ وخت ـ

وخت آخر دے په زړهٔ ياد لره خپل خدا ے (خوشحال)

(۲) آخره زمانه، قيامت ته نزدې وخت۔

وخت دې آخر راغے آشنايي زباني دي (خوشحال)

**په ـــ** :- (اص) په آخر کښې ، وروستو ، بيا به ، د کار په کېدلو۔

آخـر اوجـاروځـو جانَ
په آخر به شي پښېمانَ (طالب رشيد)

**په ـــ ځل** :-(اص) په آخر وار، په آخرکښې ،لکه : ''هغه په آخر ځل بيمار راغلے ؤ''

**په ـــ کښې** :-(اص) په آخر ځل ، په آخر وخت کښې ، په روستي عمر کښې ، په آخره ، په روستني پار کښې ، لکه : ''په آخر کښې ئې دوه ګلاسه اوبهٔ وڅښلې''۔

**په ـــ وار** :- (اص) په روستي ځل ، په آخره پېره ، په روستني ځل۔ لکه :- ''په آخر وار ئې خپله خبره ومنله''۔

**په ـــ وخت** :- (اص) د ځنکدن په وخت ، د مړ کېدو په ساعت ، په روستي وخت ، په آخر کښې ، لکه : ''په آخر وخت ئې ځان وشرمولو''۔

**د ـــ** :- (اص) روستے ، روستنے ، آخر وال ، لکه : ''د آخر سندره ئې خوږه وه '

**د ـــ په کار دې شه** :- (اص) د قيامت په ښهٔ دې شه ـ په بل جهان کښې دې په کار شه ، دا جُمله د دعا په ډول وئيلے شي۔ لکه :''ما سره دې چې کومه ښېګړه وکړه ، د آخر په کار دې شه''

**دور د ـــ** :- (اص) آخره زمانه ، آخر وخت

دور د آخر دے فساد ګډ شو لور په لور (خوشحال)

**وخت د ـــ** :- (اص) آخر وخت ، آخره زمانه ، قيامت ته نزدې زمانه

**آخرت** :- (آ + خ + ر + ت) (ع ، اس ، مذ ، وا) بل جهان ، روستے ورځ ، عُقبیٰ ، بله دنيا ، د حساب کتاب ورځ ، دقيامت ورځ۔

په دنيا ښهٔ راسره اوکړه
په آخرت د هر چا ګوښې عملونه (ټپه)

**ـــ بائيلل** :-(اص) آخرت خرابول ، داسې ناکاره کارونه کول چې په آخرت کښې به د هغو په بدل کښې سزا مومي ، بد کارونه کول۔ د ګناهونو سزا موندل ، ځان دوزخي کول ، لکه : ''بد کار کول خپل آخرت بائيلل دي''

**ـــ بربادول** :- (اص) (و ـــ آخرت بائيلل)

**ـــ بربادېدل** :- (اص) آخرت خوارېدل ، آخرت خرابېدل ، په ناکاره کارونو په ورځ د قيامت سزا موندل ، دوزخي کېدل ، لکه:'' په دې دنيا تنګسه ښهٔ ده نهٔ آخرت بربادېدل''۔

**ـــ خرابول** :- (اص) (و ـــ آخرت بائيلل)

**ـــ خرابېدل** :- (اص) (و ـــ آخرت بربادېدل)

**ـــ خوارول** :- (اص) (و ـــ آخرت بائيلل)

**ـــ خوارېدل** :- (اص) (و ـــ آخرت بربادېدل)

**ـــ د ډمبرې لرګے کول** :- (اص) آخرت خرابېدل ، آخرت خوارېدل آخره خاتمه بربادېدل ، دوزخي کېدل ، د ګناهونو سزا موندل۔

**ـــ سمول** :- (اص) آخرت جوړول ، ښهٔ کارونه کول ، عبادت کول ، د ورانو کارونو نه ځان ساتل ، لکه : ''که آخرت سمول غواړې نو ښهٔ کارونه کوه ''

**ـــ ګټل** :- لغ : آخرت حاصلول ، (اص) آخرت ښهٔ کول ، د بدو کارونو نه ځان ژغورل او ښهٔ کارونه کول چې په ورځ د قيامت خدا ے پاک ښهٔ اجر درکړي۔ د جنت حقدار کېدل ، لکه : ''آخرت ګټل په عبادت کېږي''

**په ـــ** :- (اص) په هغې دنيا ، په بل جهان ، د حساب کتاب په ورځ ، د قيامت په ورځ ،

په دنيا ښهٔ راسره اوکه
په آخرت کښې به دې څهٔ پکارومه (ټپه)

**د ـــ په ښهٔ** :- (اص) د هغه جهان په ښهٔ ، د قيامت د ورځې په ښهٔ ، د بلې دنيا په ښېګړه ، لکه:''صدقه د آخرت په ښهٔ راځي ''

**د ـــ په لار** :- (اص) د قيامت په سفر ، په آخر عمر کښې ، مرګ ته نزدې ډېر بوډا ، لکه : '' فلانے د آخرت په لار روان دے ''۔

**د ـــ توښه** :- (اص) د آخرت ګټه ، د آخرت ځوېرے ، دقيامت د ورځې سوېره ـ په دې جهان کښې نېکي چې د مرګ نه پس په کار راځي ـ لکه : '' د آخرت توښه دې شه ''۔

**د ـــ حساب کتاب** :- (اص) د قيامت د ورځې حساب کتاب ، د قيامت په ورځ د عملونو تپوس ـ چې کله د قيامت ورځ راشي نو خدا ے تعالیٰ به د هر کس نه د هغهٔ د ښو بدو تپوس کوي او هم د هغې مطابق به سزا جزا ورکوي۔ لکه : ''د آخرت حساب کتاب ډېر ګران دے۔''

**د ـــ سختي** :-(اص)د آخرت عذاب ، د قيامت د ورځې تکليف او کړاؤ۔

په دنياګۍ خوشحاله نهٔ شوم
د آخرت سختي به ګوښې تېرومه (ټپه)

**د ـــ سودا** :- (اص) (۱) د قيامت د ورځې لېن دېن ، په دې دنيا چې بنيادم کوم عبادت کوي هغې ته د آخرت سودا وئيلے شي ـ (۲) د قيامت د ورځې فکر ، د هغه جهان د سزا او جزا غم ،لکه :'' په دې عمر هم د آخرت سودا ورسره نشته ''۔

**د ـــ سوېره** :- (اص) د آخرت توښه ، د قيامت د ورځې زېرمه ، لکه:''د آخرت سوېره دې شه ''۔

**د ـــ غوغا** :- (اص) (۱) د آخرت شور ، د قيامت په ورځ د خلقو شور زوږ ، په هغه جهان د خلقو فرياد (۲) ډېر زيات شور ، چغې چغارې لکه : '' دا څهٔ د آخرت غوغا جوړه کړې ده ''۔

**د ـــ کښت** :- (اص) ښهٔ عمل چې د آخرت په کار راشي ـ لکه څنګه چې کرونده زميندار ته ګټه ورکوي ـ دغه شان عبادت د قيامت د ورځې دپاره په کار راځي۔

دنيا کښت د آخرت دے
دا خـــبره ده رښتـــيـــا (رحمان بابا)

**د ـــ کور** :- (اص) (۱) قبر ، ګور ، لکه : '' د آخرت کور دې روښانه شه'' (۲) د بل جهان کور ، د جنت کور ـ لکه : ''د آخرت په کور کښې به مومن ته د

هېڅ قسم فکر نهٔ وي''۔

د ـــ گټه :- (اص) د قيامت په ورځ د ښهٔ عمل جزا ، په دې دنيا عبادت او ښهٔ کارونه کول د آخرت گټه ده۔

د ـــ لار :- (اص) د دنيا ژوند لکه څنگه چې يو مسافر خپل ځاے ته د رسېدو دپاره مزل کوي۔ دغه شان بنيادم په دې دنيا د آخرت په لار روان دے۔لکه : ''د آخرت لار ډېره سخته ده''۔

د ـــ نخښې :- (اص) د قيامت د ورځې علامې يا نښانې ، د قيامت آثار

د آخرت نخښې ښکاره شوې
په يارانه کښې خلق کاندې حسابونه (ټپه)

د ـــ ورځ :- (اص) د سزا جزا ورځ ، د قيامت ورځ ، د حشر نشر ورځ ،

جانان چې تلو دا ئې وېنا وه
د آخرت په ورځ به کېږې ديدنونه (ټپه)

**آخره** :- (آ + خ + ر ه) (پ + ، مؤ ، را) روستو ، روستنۍ ، آخرنۍ ، په آخر کښې ، د آخر ، لکه : ''آخره ښځه خومره دنگه ده''۔

ـــ پاړه :- (اص) په لوبه کښې وروستے وار ،لکه : '' زما ملگرے په آخره پاړه کښې وسوځېدهٔ ''۔

ـــ پورې :- (اص) تر آخره ، ختمېدو يا خلاصېدو پورې ، تر آخر وخت پورې ، تر مرگَ ، لکه : '' غازيان آخره پورې په نره وجنگېدل''

ـــ پېره :- (اص) آخر وار ، په لوبه يا سوداگرۍ کښې روستے وار ، لکه : '' آخره پېره ئې وکړه ''

ـــ پېنه :- (اص) آخر وار ، آخره پېره۔لکه: ''آخره پېنه به زما وي''

ـــ چارشنبه :- (اص) (۱) چُوري ، د صفرې د مياشتې آخري شپږم يا روستۍ شروع ، روايت دے چې په دې ورځ حضرت محمد د ناجوړتيا نه صحت موندلے وو۔لکه:'' په آخره چارشنبه به مونږ هم چُوري کوؤ ۔ (۲) د هرې مياشتې د آخري چارشنبې ورځ۔

ـــ چپه :- لغ : د اوبو روستۍ څپه۔ (اص) (۱) د وبا يا يو بل آسماني آفت روستے تباه کوونکے گذار ، لکه : '' د بيمارۍ آخره چپه سخته وه'' (۲) آخره حمله ، روستني وار ، لکه ''مونږ په دښمن آخره چپه ډېره ناځاپه وکړه''۔

ـــ خاتمه :- (اص) (۱) وروستے وخت ، آخر ، انجام ، لکه'' خدايه ! آخره خاتمه مې خرابه مه کړې'' (۲) بوډاتوب ۔ لکه : ''په آخره خاتمه ئې بخت بنا شهٔ'' (عبدالغفار) (۳) مرگ

ـــ زمانه :- (اص) قيامت ته نژدې زمانه۔لکه : متل ''آخره زمانه شوه۔ د چرگورې يارانه شوه ''

ـــ شپه :- لغ : روستنۍ شپه ، (اص) د شپې آخره حصه (ب ، خ) لکه : '' په آخره غُنډه کښې دا فېصله شوې وه ''۔

ـــ قعده :- (اص) په نمانځهٔ کښې په روستي ځل ناستے۔لکه:''که آخره قعده پوره شي'' (معظم)

ـــ قوده :- (اص) د رېبلو په وخت د فصل يا د وښو وروستے موټے ، لکه : '' چې آخره قوده ئې اورېبله''

ـــ کوده :- (اص) (و ـــ آخره قوده) لکه : ''آخره کوده واښهٔ ئې په لاس کښې پاتې شوَل''۔

ـــ گېډه :- (ب ، خ) (اص) وروستے نوړۍ ، آخره نمړۍ يا مړۍ۔لکه : متل :''خدايه پلور مې مړ کې خو آخره گېډه مې وُچه مه کې''

ـــ گوته :- (اص) په يو مجلس کښې د موسيقۍ په سازو روستي غږونه۔ لکه : ''آخره گوته ئې ډېره خوندوره وغږوله''

ـــ موده :- (اص) آخر وخت ، لنگتون ته نژدې . زېږون ، لنگون يا نتگون ته نژدې ورځې۔لکه : ''د غوا آخره موده ده''

ـــ نوړۍ :- (اص) (و ـــ آخره گېډه) لکه : ''چې اخره نوړۍ ئې وکړه نو ناځاپه ئې طبيعت خراب شو''۔

په ـــ :- (اص) (و ـــ په آخر کښې) لکه ''په اخره پېره تش راغے''

په ـــ زمانه:-(اص) (و ـــ په آخر وخت) لکه: ''په آخره زمانه کښې به ډېر څهٔ وويني''

په ـــ موده :- (اص) (و ـــ په آخر وخت) لکه: ''په آخره موده خو پور پرېکړه کنه!''

تر ـــ :- (اص) تر آخر وخت پورې ، آخره پورې ، مړ کېدو پورې ، تر وسه وسه، لکه : ''تر آخره په نره وجنگېدلو''۔

**آخري** :- (آ + خ + ري) (پ ، ص ، مخ : د آخرين) آخېري ، روستے ،روستنۍ ، په آخېر کښې،دټولو نه روستو ،شاته ، لکه : ''آخري چيتۍ ئې د رنگون نه راغلې ده''۔

ـــ بيه :- (اص) آخري قيمت ، وروستے بيه ، د څهٔ څيز د خرڅولو آخري قيمت ، وروستے سر ، لکه : ''ددې چرگې آخري بيه څلور روپۍ ده ''

ـــ شوکه :- (اص) د غرهٔ په ټولو کښې اوچته يا دنگه شوکه۔ د غرهٔ آخري اوچت سر ، لکه : ''مونږ کراکړ په آخري شوکه دمه وکړه ''

ـــ خبره :- (اص) وروستے يا وروستنۍ وېنا ،لنډه او اوړده ئې دا۔

دا آخري خبره واوره
يا به سر اوخورم يا به اوکړم ديدنونه (ټپه)

ـــ دم :- (اص) (۱) تر آخره ، تر آخر وخت پورې ، تر مرگه ، لکه :''پلار ئې تر آخري دَم پورې خبرې کولې '' (۲) د چيلم يا د سگرټ آخري لوگے ، وروستے کش ، لکه : '' دا د چيلم آخري دم دے'' (۳) پاړوگان يا ښهٔ خلک چې په چا وروستۍ دعاچُف کړي۔لکه : '' احمد اُستاذ! په دې ماشوم آخري دم واچوه چې روانېږو''

ـــ دور :- (اص) (۱) وروستے وخت ، د ژوند آخري دور ، د بادشاهۍ يا د حکومت وروستنۍ ورځې۔لکه : '' د ابراهيم لودي د بادشاهۍ په آخري دور کښې ډېر اړے گړے ؤ '' (۲) د څهٔ څيز وېشلو آخري وار ، لکه : ''د چائيو آخري دور هم تېر شو''

ـــ ديدن :- (اص) (۱) آخري ليدل کتل ، وروستنے ملاقات

که آخري ديدن مې غواړې
زهٔ به گودر ته منگے ستا دپاره وړمه (ټپه)

(۲) د مرگ په وخت ليدل کتل ، لکه '' ما ئې آخري ديدن وکړو بيا ئې ساه ورکړه''

ـــ ډز :- (اص) (۱) آخري گذار ،آخري فېر،آخري پړق۔لکه :''ښکاري آخري ډز خطا کړو'' (۲) با : آخري کوروالے۔

ـــ رسول :- (اص) وروستے نبي ، پېغمبر ﷺ ، په ټولو پېغمبرانو کښې آخر ته راستولے شوے رسول چې مراد ترې نه حضرت محمد مصطفٰی دے

ـــ رکات :- (اص) په نمانځهٔ کښې د ټولو نه روستو رکات (رکعت)۔لکه : ''آخري رکات مې کولو چې ډزې شوې''

ـــ سر :- (اص) (۱) په ټولو کښې وروستنۍ شوکه ، د غرهٔ اوچته شوکه لکه : ''د غرهٔ آخري سر ته وختم '' ۔ (۲) ختمېدو ته نژدې، د چاربېتې وروستنۍ کړۍ۔لکه : ''آخري سر ئې بيا واړه وه '' (۳) د څهٔ څيز هغه قيمت چې سودا پرې جوړه شي۔لکه:''آخري سر ئې دوه سوه روپۍ دے '' (۴) د اوبو وروستۍ حصه يا څپې لکه : ''د توئې آخري سر راورسېدو''۔

**ـــ سلګی** :- (اص) وروستی ساه ،د ځنکدن وخت ،د مرګ آخري ګړی.

**ـــ غش** ف :- (اص) آخري ګذار ،وروستنے کوښښ ،لکه : ''آخري غشے ئې هم خطا لاړ''

**ـــ کتاب** :- (اص) د ټولو نه وروستو راغلے کتاب ، یعني قرآن شریف چې خداے تعالٰی په رسول کریم صلی الله علیه وسلم نازل کړے دے ـ د مسلمانانو دا ایمان دے چې تر قیامته به دا کتاب هم په اصلي رنګ کښې پاتې کېږي.

**ـــ کش** :- (اص) (و ـ آخري دم) لکه : ''آخري کش ئې ولګولو او روان شۀ''

**ـــ کشت یا ګشت** :- (اص) (۱) د قرضې آخري رقم ، هغه پېسې چې د قرض پرېکولو وروستنی ورکړه وي ـ لکه '' بینک ته مې آخري کشت پرون ورکړه'' ـ یو مضمون چې په څو برخو کښې چاپ کېږي ـ د هغۀ آخري حصه ـ لکه ''په دې رساله کښې ستا د مضمون آخري کشت هم راغلو ـ

**ـــ ګشت** :- (اص) روستے چکر ، آخري ګرځېدل ،د سپاهیانو یا د څوکیدارانو په مقرره لار آخري ځل تګ ، لکه ''دا د شپې آخري ګشت ؤ''

**ـــ ګولی** :- (اص) وروستی ګولی ، آخري ډز ، دارو سیکه خلاصېدل ، لکه : ''آخري ګولی ئې هم وچلوله''

**ـــ لوګ** ف :- (اص) (و ـــ آخري کش) لکه : ''آخري لُوګے به د چیلم نه راکاږم''.

**ـــ وېنا** :- (اص) وروستی خبره ، وروستنے نصیحت ، خبردارے ـ لکه '' دا مې درته آخري وېنا ده''

**په ـــ** :- (اص) (و ـــ په آخر) لکه : ''په آخري ئې منډه کړه''.

**په ـــ ځل** :- (اص) (و ـــ په آخر ځل) لکه : ''په آخري ځل خو کوښښ وکړه چې پاس شې''

**په ـــ وار** :- (اص) (و ـــ په آخر وار) لکه : ''په آخري وار بري شو''

**په ـــ ورځ** :- (اص) په وروستی ورځ ، په آخرنی ورځ ، د قیامت په ورځ ـ لکه : ''په آخري ورځ به کتے شي''

**تر ـــ** :- (اص) (و ـــ تر آخره) لکه : ''تر آخري ساعت به ئې کار کولو''

**آخرنے** :- (آ +خ +ر+نے) (پ ، ص) وروستنے ، آخېري ، په آخېر کښې ، شاتنے ، په ټولو کښې وروستو ـ لکه : ''...دا د احمد شاه آخرنے جنګې سفر ؤ''

**ـــ ګذار** :- (اص) آخري ګذار ، آخري وار ، آخري ډز ، وروستنے پرق لکه : ''زمونږ د غازیانو آخرنے ګذار ډېر سخت ؤ''

**په آخري** :- (آ +خ +ر+ ي) (پ ، اص) په آخر کښې ، د ټولو نه وروستو ، آخر کار ، لکه :''په آخر ئې اقرار وکړو''

**د آخرې زمانې** :- (اص) د آخرې مودې ، د آخر وخت ، د آخر عمر ، قیامت ته د نزدې زمانې ، لکه : ''د آخرې زمانې په خلقو کښې به مینه بېخي نۀ وي''

**آخرین** :-(آ +خ+ري+ن) (فا + ص) د ټولو نه وروستو ، آخري ، وروستنے .

هسې غلۀ راګډ شول په دا دور آخرین کښې (خوشحال)

که صورت ئې پېدا شوے آخرین دے (رحمان بابا)

**آخستل یا اَخستل یا ووخَستل** :- (آ +خ +س+ت+ل یا اَ+خس+ت+لُ یا وو+ خَسْ + تَلْ) (پ ، مص ، مت) (۱) په لاس کښې اخستل ، نیول (۲) اوچتول ، پورته کول ، چېګول (۳) په بیعه اخستل ، بیه کول (۴) په زور اَخستل ، قبضه کول ،فتح کول.

اخستل د قلاکله ډېر آسان وو (مسعود ګل)

(۵) اختیارول خپلول (۲) ختمول ، لرې کول ، ورکول(۷) زده کول ، د سبق یا پند نصیحت وغېره (۸) حاصلول ، بوزول (۹) وئیل ، په خولۀ راوړل، ما : واخست ، حا : اخلي ، ا : وابه خلي ، امر: واخله.

**اور ـــ** :- (اص) (او + ر ـــ) (اص) (۱) په څۀ څیز اور لګېدل ، څۀ شے بلېدل ، لکه : ''د کور اور اخستل'' (۲) د څۀ خبرې ناڅاپي خورېدل ، څۀ خبره ګرمېدل ، په څۀ وجه د خلقو غصه کېدل.

**بربت ـــ** :- (اص) سُنت اخستل ، د برېتو وېښتۀ په یو خاص انداز خرئیل یا قېنچې کول ، مسلمانان بربت اخستل سُنت ګڼي.

**بلا ـــ** :- (اص) (۱) قربانېدل ، د بل تکلیف یا مصیبت په ځان قبلول (۲)ځان په بلا اخته کول، په زور ځان ته تکلیف پېدا کول لکه:''دلبوني سره خبرې کول ځان ته بلا اخستل دي''

**پرده ـــ** :- (اص) (۱) عزت اخستل ، شرمول ، بې حیا کول (۲) څۀ راز څرګندول لکه : ''د چا پرده اخستل کچه خلق کوي''

**پند ـــ** :- (اص) نصیحت اخستل ، سبق اخستل ، عبرت اخستل ـ لکه :'' پند اخستل د هوښیارانو کار دے''

**پور ـــ** :- (اص) (۱) ذمه اخستل ، څۀ کار ته سینه ډبول (۲) څۀ څیز په سر اوچتول (۳) شور زوږ کول ، شور غوغا کول ، غوربژ کول.

**چُوکه ـــ** :- (اص) د څۀ کار دپاره تلوار کول ، بیړه کول ، څوک د څۀ خبرې دپاره مجبورول.

**په نظر ـــ** :- (اص) (۱) څوک په نظر کښې ساتل ، په چا پسې تر لرې کتل ، څارل ، لکه : ''د ګبین مچی په نظر اخستل'' (۲) څوک د نظره کول.

**په لاس ـــ** :- (اص) (۱) لاس ته کول ، په لاس کښې نیول ، څۀ کار شروع کول (۲) د څۀ څیز قیمت نغد اخستل ، سمدستي اخستل

**په غاړه ـــ** :- (اص) (۱) په خپل سر اخستل ، د څۀ خبرې ذمه وهل ـ (۲) خواه مخواه ځان په څۀ لانجه اخته کول.

**حیا ـــ** :- (اص) (و ـــ عزت اخستل)

**خور ـــ** :- لغ : د چا خورکی په نکاح کول ، اص : په زور د چا خور تښتول ، د چا سره بد کول ، د چا شرمول ، عزت اخستل ، څوک سپکول ، د خور کنځل.

**خوند ـــ** :- (اص) (۱) مزه اخستل ، څۀ څیز خوښول ، د څۀ په خوړلو یا اورېدلو خوشحالېدل ـ (۲) هسې مذاق کول ، د بل چا هېڅ بې هېڅه وخت ضائع کول ، لکه : ''خوند اخستل مه کوه''

**دعا ـــ** :- (اص) د چا ښۀ سرې دُعا اخستل ، د چا په خوشحالولو یا خدمت کولو ځان د دعا وړ ثابتول ـ لکه : '' د مور پلار دُعا اخستل ځان رنګول دي''.

**روح ـــ** :- (اص) (و ـــ اروا اخستل)

**زور ـــ** :- (اص) (۱) زور نیول ، د چا زور ورکېدل ، نوم پېدا کول ـ (۲)د بتې په اوچتولو زور اخستل ـ لکه : ''زما د لاس زور اخستل وو او طبیب ته تلل'' (۳) په څۀ پسې کرېدل ، زورېدل ـ

**سبق ـــ** :- (اص) (۱) د استاذ نه کتاب وئیل ، د استاذ نه زده کړه کول ـ کتاب لوستل ـ (۲) د چا نه عبرت اخستل.

**سُنت ـــ** :- لغ : (و ـــ بربت اخستل (اص) (۱) د چا شرمول ، بې عزته کول ، (۲) لاتدیني وېښتۀ خرئیل.

**شرم ـــ** :- (اص) عزت اخستل ، بې عزته کول ، د چا شرمول ، چاته بې عزتي رسول ، بې حیا کول ، چاته بدرد وئیل ، د پېسو په زور د چا د غریبی نه ناجائزه فائده پورته کول.

**غم ـــ** :- (اص) (۱)ځان په غم اخته کول ، ځان ته تکلیف جوړول ، هم په بیه اخستل (۲) د چا سره همدردي ظاهرول ، د بل چا په غم کښې شریکېدل

، د نورو خلقو سره غم نيمول.

**قلنګ ـــ** :- (اص) (۱) د زميندارانو د زمکې د حاصل څۀ حصه حکومت دپاره غونډول ، ماليه اخستل (۲) د چا (ک ـ س) يا قوم نه په زور زياتي پيسې ګرډول.

**کار ـــ** :- (اص) (۱) د چا د خپل مقصد دپاره استعمالول ، خپل مطلب ايستل ، لکه : '' د چا نه خپل کار اخستل او بيا په ډاګه پرېښول بده خبره ده ''(۲) چاته کار سپارل (۳) څۀ کار پېدا کول ، څۀ ټېکه مېکه اخستل

**لاس ـــ** :- (اص) (۱) د چا د مدد کولو نه وروستو کېدل، مدت پرېښول ، د چا نه ځان ډډې ته کول ، څۀ څيز پرېښول ، د چا نه لاس اخستل، ځانراغونډول، لکه: ''پښتنانۀ په تنګسه کښې لاس اخستل عېب ګڼي ''(۲) د څۀ کار نه بس کول ، نور زيات کار نۀ کول ـ (۳) د ناراضګۍ په وجه کار پرېښول.

**لاس په لاس ـــ** :- (اص) (۱) سمدستي اخستل ، بل وخت ته نۀ پرېښول ـ (۲) نغد اخستل.

**منډه ـــ** :- (اص) (۱) قدم ډېر تېزول ، په ډؤ کېدل ، ترپ کول (۲) د غلۀ پل يو طرف ته بوتلل ، د غلۀ په پل پسې تلل.

**ور ـــ** :- (اُف) (اص) (۱) د څۀ څيز د حاصلولو دپاره زياته مينه پېدا کېدل ، څۀ دپاره خواهش پېدا کېدل (۲) د چا دپاره څۀ څيز اخستل يا بيه کول.

**آخستلے** :- (آ +خ +س +ت +لے) (پ، مف، مذ ، ا ، ج : اخستلي) (۱) اخستے ، اخستے شوے ،وخستے شوے (وز) (۲) اوچت کړے، نيولے ، پورته کړے

**آخستنه** يا **اَخستنه** :- (آ + خس + ت + ن يا آ + خس + ت، + نَ) (پ، حمص) داخستو کار، د څۀ څيزاوچتول، پورته کول يا په بيه اخستل

**آخستونکے** يا **اَخستونکے**:- (آ + خس +تون + کے ، يا اَخَسْ +تُون +کے) (پ ، اس، فا ع ، مذ ، وا ، ج :- آخستونکي) (۱) څۀ څيز په بيه اخستونکے (۲) څۀ څيز پورته کوونکے يا اوچتوونکے ـ

**آخښل** يا **اخشل** :- (آ +خل + يا ا +خ + شل) (اف، پ ، مص مت ، فا: آغشتن) اخښل ، اخشل ، لمدول او مښل ، اغږل ، لکه:'' وړۀ آخښل '' وړۀ اخل ، ما : وآخښو ، حا : آغږي ، ا : وُبه آغږي ، امر: وآغږه. (پښتو قاموس)

**آخښلے** :- (آ + خ + لے يا آ + خ + ش +لے) (اف ، پ ، اس مف) اغږلے شوے ، دوړه چې لمده اوومښلے شي ـ خميره شوے ـ لکه : ''خورې! دا ښانک آخښلے درته پروت دے ''

**آخښنه** يا **اخښنه** :- (آ+خ + ن ،يا ا + خ + ش + نَ) (اف: پ (قاموس ، حمص ) اغږنه ، لمدونه او مښنه ، د اغږنې کار ـ لکه : '' د وړو آخښنه ګران کار دے ''.

**آخښونکے**ـ (آ +خُونْ + کے ، يا آخ + شُون + کے) (اف : پ ، اس فا ع) اغږونکے، هغه څوک چې ووړۀ اغږي ـ

**آخور** :- (آ + خو + ر) (فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : آخورونه ، مخ : د آب خور پهه : اَخْ وَرْ ، آو : اَ ، کُوَرَ) طويله ، تان ، تُومبئے ، (ب ، خ) د کور نوکرۀ ، د ترلو ، ګيا او د اوبو ورکولو ځاے.

پهٔ آخور ئې کېزه کړے اوترلم (خوشحال)

**آخون** :- (آ + خُو + ن) (فا ، مخ : د آخوند ، آغا و خوندګار : خداوندګار (رهخدا) اس مذ وا ، ج : آخونان (مؤ ، وا : آخونه ، ج : آخوني)(۱) استاذ ، معلم ، ايستوذ (ب ، خ) (۲) عالم ، علامه ، مولوي ، مُلا دے آخون موسیٰ راوړے (معظم)

(۳) اولسي ، نالوستے يا کم علمه شاعر ، چې هر وخت شعرونه او چاربېتې جوړولے شي او په يادو ئې وائي.

په هر قصر کښې آخونه (جنت الفردوس)

**آخوند** :- (آ + خُو + ن + د : آ + خُنْ + د) (فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : آخوندان آخوندون، (مؤ ، وا : آخونده ، ج : آخوندے) (وـــ آخون)

خولۀ ئې پېچلې معمه ده
آخوند به چېرې په معنیٰ اورسېږينه (ټپه)

**آخون زاده** :- (آ+ خُون + زا + د) (فا: آخوند زاده، اس، مر، مذ، وا، ج : آخون زادګان) داخون زوے، داستاذ نرينه اولاد ،لکه''محموداخون زاده فېصله وکړه''

**آخېړ** :- (آ + خې + ړ) (ف ، پ (سيند) ، اس ص ، مذ، وا ، ج:آخېړونه) ختې ، د لېۀ دپاره د بوسو ګډه نرۍ ختېه ، د ختو ګروبے ، نرمه ګارا چيکړ ، ټينګ ګروبے ، لکه : ''په دېوال ئې آخېړ وکړو''

**ـــ کول** :- (اص) (۱) لېو دپاره ختې تيارول يا جوړول (۲) لېو کول ، لېۀ ورکول ، آخېړل ، لکه : '' دا کوټه آخېړ کول ضروري دي '' (۳) سفېدي کول ، سپينول ، لکه ''آخېړ کول څۀ وو هسې ځان ربړول وو ''

**ـــ کېدل** :- (اص) (۱) ختې کېدل ، ګروبے يا ګارا کېدل ، چيکړ کېدل (۲) لېۀ کېدل ، لېوېدل ، آخېړېدل (۳) سفېدي کېدل ، دېوال سپينېدل.

**ـــ ګر** :- (ـــ ګ + ر) (اف : پ ، سيند ، اس فا ع ، مذ ، وا ج: آخېړګران ، مؤ ، وا : آخېړګره ، ج : آخېړګرې) اخېړکوونکے يا تياروونکے ، ګلکار ، ختمار ، د ختو لېۀ کوونکے ، لکه:'' آخېړګر به دوه روپۍ مزدوري غواړي''

**آخېړل** :- (آ + خې + ړ + ل) (پ ، مص مت) (۱) لېۀ دپاره ختې تيارول ، ګروبے کول ، ګاره جوړول ، چيکړ کول (۲) لېۀول ، لېۀ ورکول ، چيکړ لګول (۳) کور سپينول ، کور ته چونه ورکول ، ما: واخېړۀ ، حا : اخېړي ، ا: وُبه اخېړي ، امر : واخېړه.

**آخېړلے**:- (آ+ خې+ړ+لے) (پ،مف،مذ ، وا ، ج: آخېړلي، مؤ،آخېړلے) اخېړلے شوے، د لېۀ دپاره تيارۀ شوې ختې، تياره شوې ګاره، جوړه شوې چيکړ.

**آخېړمار** :- (آ+خېړ+ ما + ر) (پ ،اس ، فا ع ، مذ، وا، ج: آخېړماران (مؤ ، وا : آخېړماره ، ج: آخېړمارې) (وـــ آخېړګر)

**آخېړنه**:- (آ + خې + ړ + نَ) (پ ، حمص) د آخېړلو کار ، آخېړل ، د لېۀ دپاره د ختو جوړونه ، د چيکړ جوړونه ، لکه : '' ختې آخېړنه مې نن شروع کړه ''.

**آخېړول** :- (آ + خې + ړ+ ول) (اف : پ (سيند) ، مص ، مت) (وـــ آخېړل) ما : وآخېړوۀ ، حا : آخېړوي ، ا : وُبه آخېړوي ، امر : وآخېړوه.

**آخېړونه** :- (آ + خې + ړ + ونَ) (پ ، حمص) (وـــ آخېړنه)

**آخېړونکے** :- (آ + خې + ړ+ وو+ ن + کے) (پ ، اس ، فا، ع ، مذ ، وا، ج: آخېړوونکي) (وـــ آخېړمار)

**آخېړېدل** :- (آ + خې + ړې + د+ ل) (ف، پ (سيند) ، مص ، لا (وـــ اخېړ کېدل)

**آخېړې کېدل** :- (آ + خې + ړې + کې + د +ل) (ف ، پ ، مص ، تر، لا د غړکې (د شوملو يعني تروو ګوډے) لاندينۍ حصه سورې کېدل

**آخيستل** يا **اَخستل** :- (آ +خيس+تل ، يا اَ+ خَسْ + ت + لْ) (ف ، پ (سيند) ، مص ، مت) (وـــ آخستل) ما: واخستۀ ، حا : اخلي ، ا:وُبه خلي ، امر : واخله.

**آخیستنه یا آخستنه** :- (آ+خِس + ت+ نَ ، یا آ+خَسْ+ ت + نَ (پ، حمص)(و ــ آخستنه)

**آخیستوال** :- (آ+ خیس + ت + وال) (اف ، پ (سیند) ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ) (۱) آخیستونکے ، نیوونکے (۲) تحصیلدار۔

**آخستونکے یا اَخستونکے** :- ( آ+ خِسْ + تُون + کے ، یا اَ + خَسْ + تُون+کے) (پ،اس،فاع ، مذ ، وا ، ج: آخیستونکي) (وــ آخستونکے)

**آخستونے یا اَخستونے**:- (آ+ خَسْ + تُو + نے ، یا اَ + خَسْ + تُونے ) ( پ ، اس فا ع، مذ ، وا ، ج : آخستوني ) (۱) آخستونکے ، څۀ څیز بل نه اغشتے شي ، خداوند پاک ، لکه : " چې ورکړونے د ملکونو هم آخستونکے د ملکونو واړه خداے دے " (فوائد شریعت)(۲) هغه څیز چې په قیمت اخستل ئې ضروري وي۔ لکه : "رومال مې ضرور اخستونے دے "

**آداب** :- (آ + دا + ب) (ع ، اس ، مذ ، ج ، وا + ادب (اَدبَ: مهذب کېدل) (۱) د مرتبې لحاظ (۲) مراتب ، رُتبې (۳) تهذیب ، اخلاق ، تمیز ، سلیقه (۴) قواعد او دستور ، لکه : "... نو هغوي هم هر کله چې د داسې عبادت د آدابو نه نابلده وي ، نو له ثوابَ ئې عذاب زیات شي " (سراج الحج ) (۵) په تعظیم سره سلام او د تعظیم الفاظ (۲) د تمدني او معاشرتي ژوند په ښۀ شان تېرولو قواعد ، لکه : " د ښۀ ژوند تېرولو آداب داسې نۀ وي "

**آدم** :- (آ + دم) ( ع ، اس ، مذ،وا ،ج : آدمیان ، عب ، آدمه ، عرض ، خاوره ، ع : بنیادم ) بشر ، سُره ، خاورې ، مزکه ، اَدیمه ، د مزکې مخ (۱) نوع انسان ، نوع بشر ، ورومبے بنیادم چې د انسان نسل ترې نه شروع شوے دے۔ (۲) بنیادم ، انسان ، بشر ۔

که تۀ آدم ئې کار د آدم کړه (خوشحال)

**آدم جي** :- (آدم + جي) (ع + ه ، اس ، مذ ، وا ) د پارسیانو د سړو نوم ، لکه: " آدم جي د رخت یوه لویه کارخانه جوړه کړه "۔

**آدم خان** :- (آدم + خا + ن) (ع ، پ ، اس ، مذ ، وا ) (۱) د سړي نوم (۲) د آدم درخانې د قیصې هغه زلمے۔

درخو خود په آدم خان باندې شېدا وه (خوشحال)

(۳) د قندهار (افغانستان) په ولایت کښې په دې نوم درې کلي۔ (آریانا )

**آدم خور** :- (آدم + خو + ر) (ع ، فا ، اس ، مر ، مذ ، وا ، ج : آدم خوارۀ ، مؤ : وا : آدم خوره ، مؤ ، ج : آدم خورې ) (۱) سړي خور ، سړي خوړونکے

څۀ به وایم ستا د عشق و آدم خور ته (حمید )

(۲) د مزار شریف ( افغانستان) په ولایت کښې د یو کلي نوم (آریانا ) (۳) د محترم شاه دریم ( مهترچترال) لقب ۹۲ـ ۱۸۵۲ء (۴) اص : سخت او کلک زړے، ظالم قاتل ، په زړۀ سخت سړے ، ناترسه ۔

**آدم خېل** :- (آدم +خې+ ل ) (ع ،پ) اس، مر، مذ، وا، ج(مشر)، مؤ: وا : آدم خېله ، ج : آدم خېل ) د افریدو په اتو خېلونو یا پښنو کښې یو خېل چې د کوهاټ او پېښور په مېنځنۍ علاقه کښې وسېږي۔ لکه: " القصه افریدي آدم خېل واړه یکرنگ راسره ولاړ وو" (تاریخ مرصع)

**آدم ذات** :- (آدم + ذا + ت) (ع ، پ ، عا ، اس ، مر ، مذ ، وا +ج ، مؤ ، وا: آدم ذاته ، ج : آدم ذاتې) لُغ : د آدم د ذاته۔اِص : بنیادم ، آدم زاد انسان۔

آدم ذات مونږه نۀ وینې (رشید )

**آدم زاد** :- (آدم + زا + د ) (ع ، فا ، اس ، مر ، مذ ، وا ، ج (مشر) ، مؤ ، وا: آدم زاده ، ج : آدم زادې) آدم ذات ، بنیادم ، انسان۔

آدم زاد په اصل واړه آدم زاد دي (خوشحال)

**آدم صورت** :- (آدم + صو +ر+ ت) ( ع ، پ ، اس ، مر ، ص، مذ ، وا ، ج: مؤ ، وا : آدم صورته ، ج : آدم صورتې ) د بنیادم په جوثه ، د بنیادم په شکل

آدم صورت یو دواب شکم یو (خوشحال)

**آدمیت** :- (آد + مي + یَتْ) (فا + ص) سړیتوب ، انسانیت ، بنیادم توب

آدمیت له آدمیانو نه خداے واخېست (خوشحال)

**آدوم یا اَدوم** :- (آ یا اَ + دو + م) (پ ، وز + ب + خ ، اس ، مذ ، وا ، ج:ادومیه یا آدومونه) اندام ، حصه ، جوړ ، لکه : "د غوشې غټ آدوم وېرکه "

**آدینه** :- (آ + دي + نَ) (فا ، پ ، گن ، اس) (۱) جمعه ، د جمعې ورځ لکه : " د اختر ادینه نۀ پېژني " (۲) د زیارت ورځ ( ب ، خ ) لکه:"په آدینه پسې جمعه راځي "۔(۳) مردان ضلعې د صوابۍ په تحصیل کښې یو کلے۔

**آذر** :- (آ+ ذَرْ) (فا ، او ، آثر ، اتَرْ ، پهه : آتور ، اس ، مذ ، وا ) (۱) د مجوسیانو د عقیدې له مخه د نمر او اور واکمنه فرښته ده ۔ددې کلمې اصلي معنه اور ده۔ چې اور نمځنو (آتش پرستو) ئې د یوې فرښتې په اعتبار احترام کاوۀ۔ (اُف : آریانا ) (۲) د حضرت ابراهیم علیه السلام د پلار ، ترۀ یا سرپرست نوم چې بتونه یا بُتان به ئې جوړول ۔

**آذري** :- (آ+ ذ + ري ) (فا + اس ، ص ) (۱) د آذر سره تعلق لرونکے۔(۲) آذري ژبه د زړې فارسۍ یوه لهجه وه چې په آذر بائجان کښې وئیلې کېده۔ اوس هم په ځینې کلو او قفقاز په خواؤ شا کښې پرې خلق خبرې کوي۔ (اف : آریانا )

**آذوب** :- (آ+ ذو+ ب ) (پ ، وز ، بنو ، ب ، خ ، ع : عذاب ، اس ، مذ ، وا ، ج : آذوبینه ـ آذوبونه ) تکلیف ، درد ، ربړ ، سزا ، لکه" نن ئې ډېر آذوب کړل"

**پهـــ کول** :- (اص ) په عذاب کول ، په تکلیف کښې اچول ، ربړول ، لکه : "هسې ځون په آذوب کول دي ، نوره فائده ئې نشته "

**آذوبول** :- (آ+ذو + بَ ، وُ + لْ) (پ ، وز ، بنو ، ب ، خ ، مص مت) عذابول ، تکلیف ورکول ، ربړول ، زورول ، سزا ورکول ، لکه" دا ماشوم آذوبول کوي "۔ما: آذوب که ، حا : آذوبوي ، ا : وُبه آذوبوي، امر : آذوب که۔

**آذوبېدل** :- (آ+ذو + بې + د ، ل) (پ ، وز، بنو، ب، خ ، مص) عذابېدل ، په تکلیف کېدل ، ربړېدل، ځوربدل، لکه" نن هسې آذوبېدل دي"

**آذوقه** :- (آ+ ذُو + قَ) (فا ،اس، مؤ، وا ، آب: اوبۀ + ذُقه + خوراک ) ع: عدقه ، عزقه ) (۱) خوراکه ،د خوراک څیزونه یا سامان، د مارغانو دپاره اوبۀ او دانې(۲) گذاره، لږه خوراکه ( دا تورے داسې هم لیکلے شي : آزوقه، آذقه آزقه )

**آرابه** :- (آ+ را +بَ (پ، ع ، عربه،اس، مؤ، وا ) ربړه ، د ربړې په شان گاډے، چې پایې ئې لویې وي ۔دا ربړې په ترکستان کښې استعمالېږي۔ لکه "زمونږ د سوارلۍ دپاره ئې یوه آرابه (گاډے) چې یو آس راکښله راپېدا کړه " (د آزادۍ تلاش)

**آراسته** :- (آ+ را +س+تَ (فا ، پهه،اراستک، ص، کول او کېدل سره ) ښائسته کړے شوے ، سنبال شوے ، ښکلے جوړ شوے۔

آراسته فلک ملک په پرو بال شۀ (حمید)

**آرام** :- (آ+را+م ) (فا ،اس،مذ ،وا ) ذمه ، قلارے ،سئیله۔

نفس په لونده په اوچه آرام وکا (خوشحال)

لکه:"اوس به لږ آرام وکړو"

**ـــ حرام کېدل** :- (اِص) زحمت ، بې آرامه کېدل ، په کړاؤ کېدل

**دزړۀ ـــ** :-(اِص) دزړۀ قلارے ،د زړۀ دمه ، خوشحالي ، تسلي۔

**ـــ طلب** :- (اص) (ـــ ط + ل + ب) (پ ، اس) څوک چې هر وخت ارام کول غواړي ، ناراست ، سست پست ، بې کاره ، لټ ، لکه :" فلانے سړے ډېر آرام طلب شوے دے".

**آرت** :- (آ+رْ + تْ) (پ ، ص) ارت ،خوشحال ، پراخ ، پلن ، ارت بېرت، خلاص.لکه: "دمنه شتربه ورته ورغے په ارت زړهٔ" (گلشن روه)

**آرتاؤ** :- (آ+رْ + تا + ؤ) (اف: پ (سیند) اس ، ص) اچولے ، غورځولے ، ارتاؤ ، اړتاؤ . لکه" دا دارو دې ولې ارتاؤ کړل؟"

**ـــ کول** :- (اص) راپرزول ، راغورزول ، اړتاوول ، راگذارول ، لکه :" د بوټې ارتاؤ کول څهٔ گرانه خبره ده"

**آرتاوؤل** :- (آر + تا + وَ + وْ ، لْ) (ف ، پ (سیند) مص، مت) (و ـ ارتاؤ کول) ما: ارتاؤ کړو ، حا: ارتاووي ، ا: وُبه آرتووي ، امر: ارتاؤ کړه

**آرتاوېدل** :- (آر+ تا + وې + د+ لْ) (اف ، پ (سیند) مص ، لا) ارتاوېدل ، راپرزېدل، راغورځېدل ، راگزارېدل ، ما : آرتاؤ شهٔ ، حا: آرتاوېږي ا: آرتاؤ به شي،امر : آرتاؤ شه.

**آرتاویز** :- (آر + تا + وي + ز) (ف ، پ (سیند) اس ، ص، مذ، وا) دوړې مار ، هسې عبث خبرې کوونکے ، اړتو پړتو خبرې کوونکے ، اړتاوک ، لکه " فلانے سړے هسې آرتاویز دے".

**آرتل** :- (آر + تل) (پ ، ف ، مت) (۱) پرانستل ، پرانیځل ، خلاصول ، (۲) باد پرېښول ،تیز اچول

**آرت** :- (آر + تَ + ول) (ف، پ (سیند) مص مت) اچول ، کښېښول ، د سر نه پېټے غورځول ، اړول ، د یو لوښي نه څهٔ څیز بل ته اچول . لکه:"د چائینک نه چائې ارتول کوم گران کار دے" ما: و آرتهٔ ، حا: آرتوي ، ا : وُبه آرتي ، امر: وُآرته.

**آرتول** :- (آ+ر + تَ + وُ + ل) (پ ، مص مت) خلاصول ، بري کول ، غوټه پرانستل لکه :"پولیس ترل کوي او عدالت آرتول"

**ارته** :-(ا+ رْ + تَ) ازاده ، خلاصه ،

**پښې ـــ** :-(اص) پښه خلاصېدل،د کوژدن نه پس د چنغول د سخرانې کره تلل، پښارته.

**آرتینه**:- (آر + تيْ + نَ) (ف : پ (سیند) ، اس ، مؤ ، وا ، ج: آرتینې) ښځه ، تېر ، د کور مېرمن. (دا لفظ بدو معنو کښې استعمالېږي) (پښتو سیند) لکه" چې رخشي ارتینه وه مرجانه نومېده" (گلشن روه)

**آرتېیل**:- (آر + تې + يَلْ) (پ ، (مل) ، ف مت) آرتاوول ، راغورځول ، راگذارول ، را اچول ، لکه " ملېزي آرتول ته آرتېیل وائي".

**آرټ**:- (آرْ+ټ) (انگ : Art اس ص ، مذ ، وا) فن ، هُنر ، چل ،لکه:" نن پرون گډا آرټ گڼلے شي"

**آرزو** :- (آ + رْ + زُو) (فا ، اس ، مؤ ، وا ، مؤ ، ج : آرزوگانې) کېدل ، لرل سره) (۱) خواهش ، ارمان.

چې آرزو د سپیني خولې په هزار باره (نعیم)

(۲) منت زاري،عرض،لکه "چې دوه التماس آرزو لرم" (تاریخ مرصع)

**ـــ په زړهٔ لرل** :- (اص) زړهٔ کښې خواهش لرل ، ارمان لرل ،

دا آرزو په زړهٔ لرمه (خوشحال)

**ـــ کول** :- (اص) طمعه کول ، خواهش کول ، ارمان کول.

چې له تا ځنې آرزو د ملاقات کا (علي خان)

**آرزومن** :- (آرْ + زُوْ + مَنْ) (فا ، پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا ، مؤ ، وا: آرزومنه ، ج : آرزومنې) خواهش مند ، طمع لرونکے ، ارماني

په جهان کښې آرزومن د ښهٔ دیدن یم (خوشحال)

**آرزومند** :- (آرْ + زو+ مَنْ + د) (فا ، اس،فا ع ، مذ ، وا ،مؤ ، وا: آرزومنده ، ج: آرزومندې) (و ـــ آرزُومن)

ده عرضې د ملاقات له آرزو منده (علي خان)

**آرړمئے** :- (آر + ړ + مئے یا آرْ + ژَ + مے) (اف : پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: آرړمي) (۱) انډرکے ، آرژمئے ، لکه " دومره زیاته ډوډۍ ئې وخوړه چې بیا ئې آرړمي کول " (۲) خولهٔ بکے ، د ستومانۍ یا د خوب نه پس خولهٔ واژه واژه کول ، اسوېلے (خل) آرژمئے (گن) لکه "آرړمئے د خوب نخښه ده ".

**ـــ ایستل** :- (اص) آرړمئے کول ، خولهٔ واژه واژه کول ، اسوېلے ایستل (خل) لکه "آرړمے ایستل بد ښکاري"

**ـــ کول** :- (اص) خولهٔ واژه واژه کول ، اسوېلے کول ، لکه"آرړمے کول پرېږده"

**آرغوش** :- (آرْ + غو + ش) (اف ، پ (سیند) اس ص ، مذ ، وا ، مؤ ، وا: آرغوشه ج : آرغوشې) غنم رنگه ، سکاڼ.

**آرغوند** :- (آرْ + غُون + د) (اف، پ (سیند) اس ، مذ ،وا) آرې ، ټوسې ، یوه لوبه ده چې په یو لوے لرگي یا ډنډې نور واړهٔ لرگي د یوې غونډې کرښې (دائرې) یا د نښغې کرښې د حد نه بهر وباسي.

**آرغه** :- (آرْ+غَ) (اف : پ (سیند) اس ، مذ) (و ـــ آرغوند)

**آرموني** :- (آرْ + مو + ني) (پ (روسي قاموس) انگ: هارمونیم ، اس ص) هغه باجه چې په گوتو غږولے شي.آواز ئې ډېر خوږ او زړهٔ راښکونکے وي. لکه "آرموني باجه راوړه"

**آرن** :- (آ + رَنْ) (پ (روسي قاموس) انگ : هارن ، اس مذ ، وا ، ج: آرنونه) د لارۍ یا موټر هغه آواز چې د خلقو د خبردارۍ دپاره غږولے شي.لکه : "آرن ئې وکړو ".

**ـــ کول** :- (اص) د موټر یا لارۍ هغه څیز نه آواز ایستل کوم چې خبردارے ورکوي.لکه : "دلته آرن کول منع دي"

**ـــ کېدل** :- (اص) د موټر یا لارۍ د خبردارۍ آواز کېدل ، لکه" د آرن کېدل وو او د هغه سرک پرېښول".

**آرند** :- (آ + رَنْ + د) (پ (روسي قاموس) اس ، مذ ، وا) (و ـــ آرن)

**آرووَل یا آرووَل** :- (آر+ وَ + و + ل یا آرَ + وَ + و + ل) (پ ، مص ، مت) اورول بل ته تر غوږو کول، د چا تر غوږو رسول. لکه :" یاد کړے سبق استاذ ته اورول ښهٔ خبره ده" ما: واروَاوهٔ، حا : آرووي ، ا: وُبه آرووي ، امر: وُ آرووه.

**آروولے یا آروولے** :- (آر+وَ + ولے یا آرَ + وَ + ولے) (پ ، اس ، مف) اورولے ،اورولے شوے ، د بل تر غوږو ور رسولے شوے.لکه"آروولې خبره بیا ولې ارووې"

**آرووونکے یا آرووونکے** :- (آر+وَ+ وون + کے یا آرَ+وَ + وو+ ن+ کے) (پ اس ،فا ع ، مذ ، وا ، ج : آرو وونکي) بل ته خبره ارو وونکے ، هغه څوک چې بل چا ته څهٔ تر غوږو تېروي.لکه :"آرو وونکے رښتونے دے".

**آرووونه یا آرووونه** :- (آر+وَ + ونَ یا آرْ + وَ + ونَ) (پ حمص) د اورولو کار اورول ، د بل چا تر غوږو د خبرې رسونه.لکه " زما کار خو آرووونه ده نوره خوښه ستا خپله"

**آرو وُونے یا آرو وُونے** :- (آر+ وَ + وو+نَے یا آرْ + وَ + ووُ + نَے) (پ، اس فا ع) (و ـــ آرو وونکے)

**آرو وونې یاآرو وونې** :- (آر+و + و + نې یا آرُوَ + وو+ نې ) (پ، اس مف) **هغه** خبره چې د بل تر غوږو رسوونې وي. د آورولو جوګه ، د بل تر غوږو د رسولو قابله. لکه '' دا خبره نن آرو وونې ده ''

**آروېدل** یا **آروېدل** :- (آر+وې + د ، ل یا آرُ+ وې + د + ل ) (پ مص لا) اورېدل ، د څۀ خبرې تر غوږو رسېدل ، لکه '' مرزا حکیم په آروېدل ددې خبر فرار وکړ کابل ته لاړ '' (تاریخ مرصع)

**آروېدلے** یا **آروېدلے**:- (آر+وې + دلے یا آرُ + وې + دلے ) (پ، ف ، مذ ، وا ، ج : اروېدلي ) آورېدلے ، تر غوږو رسېدلے ، لکه '' ... او چې خپلوانو ئې اګرچې نوم د دیوان اروېدلے وو '' (ګلشن روه)

**آروېدنه** یا **آروېدنه** :- (آر+وې + د + ن یا آر+ وې + د + نَ ) (پ ، حمص ) د اورېدلو کار ، آورېدنه ، لکه '' ټول عمر به آروېدنه کوې که په خپله به هم څۀ وائې ''

**آروېدونکے** یا **آروېدونکے** :- (آر+ وې + دون + کے یا آرُ + وې +دون+کے) (پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا ، ج : آروېدونکے) آورېدونکے ، **هغه** څوک چې خبره آوري. لکه '' زۀ ستا د خبرو آروېدونکے یم ''

**آروېدونے** یا **آروېدونے** :- (آر+وې + دُون + نے یا آرُ + وې + دو+ نے ) (پ، اس ، فا ع ) (۱) **هغه** څوک چې د بل آوري ، اورېدونې ، لکه:''**هغه** خو بس آروېدونے دے '' (۲) ص : د اورېدلو جوګه ، ددې جوګه چې واؤرېدے شي لکه '' دا خبره ئې آروېدونې ده '' (۳)د غوږونو کچه.

**آروېدۀ** یا **آروېدۀ** :- (آر+وې + دۀ یا آرُ + وې + دۀ ) (پ ، حمص ) (و ـــ آروېدنه) لکه :'' چې که نوم ئې آروېدۀ کېږي '' (ګلشن روه)

**آره** یا **آره** :- (آ+رَ یا آ +رَ) (پ،ه: آرا ،اس، مؤ، وا ، ج: آرې) دلرګي د څیرلو یا پرېکولو اوازار، هغه غاښورتېرۀ څیز چې اوسپنې نه جوړ وي او لرګي پرې څیرلے شي. ځینې خلک ورکوټې شان اره جوړه کړې او د لور په شان وابنۀ وغېره پرې رېبي.لکه:''زما اره ډېره پڅه ده ''

**آرۀ** :- (آ+ رۀ ) (ف ، پ (پښتو قاموس ) ،اس، مذ ، وا ج : آرې) (۱) بنیاد ، بېخ، لکه '' ... په دې کتاب کښې زما د پلټنې او څېړنې آرۀ دغه څلور خبرې دي'' (حبیبي) (۲) اصل ، نسل ، خېل (۳) کیل ، کرک، (ب،خ) د یوې کیل،لکه: '' پټے مې خلاص کړۀ ، دوه درې آرې ئې پاتې دي '' (پښتو سیند)

**آري** :- (آ+ ري) (پ ، ګن) اس ، مؤ ، وا ) ششت ، شش ، هغه ګوته چې آئینه په کښې لګېدلې وي.او د لاس په کټه ګوته کښې اچولے شي.

**آریا** :- (آر + یا ) (ف ، ه : آریه ، اس ، مذ ، وا ، ج: آریاګان ) (۱) یو ډېر زوړ نسل چې زرګونه کالونه آګاهو د ایشیاء په مېنځنۍ علاقه کښې مېشت ؤ . او رو رو د زمکې په مخ قبلئیز او سوبلې علاقو کښې خور شۀ. لکه '' ... اؤ نۀ دوي چېرې یونانیانو یا آریا خلکو سره ګډ شوي وو'' (اسلامي فکر ماخذ) (۲) د هندوانو یوه فرقه چې د دیانند سرسوتي منونکې ده (۳) عزت من، شریف ، اصیل (۴)هوښیار ، عقلمند (۵) کرک جن ، ظالم ، سخت زړے (۲) غوښمه سیمه ، نر طلبه مېښه ، **هغه** مېښه چې وار راؤړي (بنو + وز )

**آریاب کاریاب** یا **آریوب کاریوب** :- (آر+یاب + کار + یاب یا آر+ یوب + کار+ یوب) (پ ، اس) (۱) حېران ، حق حېران ، پرېشان ، لکه''زۀ ورته آریاب کاریاب ناست یم'' (۲) په کړاؤ کښې ، فکرمند .

**آریانا** :- (آر + یا + نا ) (اف ، اس ، ص ، مؤ ) (۱) د آریاؤ وطن ، دین ، تهذیب او د دود دستور سره نسبت لرونکے ، (۲) د پښتو ژبې انسائیکلوپېډیا چې په افغانستان کښې چاپ کېږي (۳) د افغانستان یوه صوبه چې سمت جنوبي ورته وئیلے شي. (۴) د افغانستان هوائي چلن ، لکه '' سبا لس بجې به په آریانا الوتکه کښې کابل ته ځم ''.

**آریائي** :- (آر+ یا + ئي) (ه، اس،ص) د آریاؤ سره **تعلق** لرونکے ، د آریاؤ او مخارجو په لحاظ سره آرائي ژبې دوه قسمه دي (د پښتو ادبیاتو تاریخ)

**آړ** یا **اړ** :- (آ+ ړ یا آړ ) (اف : پ ، (سیند) اس ، ص ، مذ،وا ، ج: اړونه) (۱) د ډېر خوراک نه چې خېټه خرابه شي او کوز کتل یا قے ورځي. لکه :'' دومره دې ولې خوړل چې آړ دې شو'' (۲) حصارتیا ، بندېز، پابندي ( پښتو قاموس ) (۳) د څۀ څیز شاته کښېناستل ، په شو کښې لکه '' د دېوال آړ ئې واخست'' (فوځي اص )

ـــــ **آخستل** :- (فوځي اص ) (۱) د څۀ څیز شاته پټ کښېناستل. چاته مخه نیول (۲) د چا سیمه نیول ، د چا نه پناه کېدل ، د چا شاته اودرېدل ، د چا شاته کېدل.

**آړت** :- (آ + ړَ + ت ) (پ ، ه : آړهت ، اس ص ، مذ وا ) (۱) په منډۍ کښې د مال د مزدورۍ دړت یا دړ، دستور ، د نغدي یاد جنس په شکل کښې. لکه '' څلور سېره خو ئې آړت رانه واخست '' (۲) د منډۍ کاروبار ، د سوداګرو د مال خرڅولو او اخستلو کار. لکه '' جمال اوس د آړت کار کوي ''

**آړتي** :- (آړ + تي ) (پ ، ه : آړهتي ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : اړتیان ) وړوائي ، هغه څوک چې د آړت کار کوي. سوداګر ، په یو ځاے یا لوېه او درنه سودا کوونکے ، د منډۍ دلال. لکه '' د آړتي نه مې وریژې واخستې ''

**آړکے** یا **آړکے** :- (آ+ړ +ک+ ے یا آ+ ړ + کئے ) (اف ، پ (سیند) اس ، مذ ، وا ، ج آړکي ) (۱) د لرګي د اندرېائې یا د زینې یوه خانه یا قدمچه ، د پوړۍ پایه، دستکے ، د پوړۍ وګئ (ګن). لکه '' د پوړۍ یو اړکئے مات دے '' (۲) غوړکے ، (ب، خ) کړۍ ، لاړې ، برګې.

**آړول** یا **آړول** :- (آ + ړ+ ول یا آ + ړ + وَ + ل ) (پ (راورټي) مص ، مت) (۱) څیز په مخ کول ، اپوټه کول. لکه '' دا کوټ په بل مخ اړول غواړې ''(۲) پټے اړول،په زمکه کښې یوې یا قلبه کول (۳) د کتاب پاڼې د یو مخ نه په بل مخ کول لکه ''پاڼه اړول '' (۴) بندول ، منع کول ، څوک څۀ کار ته نۀ پرېښول. لکه '' څوک د یوې چارې نه اړول'' (۵) وړل ، چلول ، اوچتول ، درمن اړول (۲) د اوچت ځاے ، څیز ، دېوال ، غونډۍ نه یا د ولې نه بل طرف ته پورې ایستل. لکه:'' له غرۀ نه اړول '' (۷) بارول ، لېږدول ، لکه '' ورے په ځناور آړول '' (۸) یوه خبره په چا ورتپل ،په چا څۀ خبره پورې کول یا ثابتول لکه ''په ما دروغ آړول ګران دي '' (۹) پښه په بلې پښې پاس ګرځول لکه : ''پښه آړول '' (۱۰) اوبۀ په بل طرف ګرځول ، لکه : ''ستا اوبۀ اړول او زما ډز کول'' (۱۱) اوبۀ تویول (۱۲) پښېمانه کول ، د بیان نه منکر کول (۱۳) کډې اچول ، ډېره کېدل ، ډېره ډانډه نیول. ما: وارؤۀ ، حا : آړوي ، ا : وابه‌روي ، امر : وارِوه.

**آړولے** :- (آ + ړ + ولے ) (پ (راورټي) ، اس ، مف ) اړولے شوے ، په بل مخ کړے شوے ، بند کړے شوے ، بار کړے شوے ، په چا څۀ خبره تپلې او منلې شوې. لکه : '' په ما ئې هېڅ بې هېڅه دا ټولې خبرې آړولې وې ''

**آړونه** :- (آ+ ړَ + ونَ ) (پ (راورټي) حمص) اړالونه (ایسارونه ) بندونه ، ګرځونه ، لکه :''د بدکار نه ستا آړونه ګرانه ده ''

**آړوونکے** :- (آ+ړ + وون + کَے ) (پ (راورټي) اس ، فا ع ، مذ ، وا، ج: آړوونکي) په چا یوه خبره په زور منونکې. څۀ څیز په بل مخ کوونکے بار آچوونکے ،

د څۀ خبرې نه منع کوونکے ، اوبلېه بل طرف ګرځوونکې ـ لکه :'' ګوره اوبۀ آړوونکے ولاړ دے ''

**آړۀ** :- (آ+ ړۀ) (اف : پ (قاموس) ا ص) دين پرېښول ، مذهب نه اوړېدل ، کفر اختيارول ـ

**آړه** :- (آ + ړَ) (ا ف ، پ (سيند) اس ، مؤ ، وا ، ج : آړې) (۱) د يوې يا د سپارې ليکه يا کرښه ، کرک (ب ، خ) لکه:'' پټے مې نور خلاص کړۀ ، خو يوه آړه پاتې ده '' (۲) د ژرندې مزدوري ، حق يا چُونګړے ، باړه (۳) بدل ، عوض (۴) ګډه ، مېږه (بنو) (۵) لېښ دېښ (لېن دېن) (ظفراللغات) (۲) بندېز (۷) تنازعه ، قضيه ، کشاله ، لانجه

**آړه** :- (آ +ړَ) (پ (وز، ب ، خ) اس ، مؤ ، وا) ضرورت ، حاجت ، منت ، سوال ـ لکه '' دمو در ته هيڅ آړه نشته ''

**ـــ لرل** :- (اص) تعلق لرل ،غرض لرل ـ

**آړے يا بګړے** :- (آ+ ړے + ب + ګ + ړے) (پ (وز) اص) د ماشومانو يوه لوبه ـ هغه لوبه چې ماشومان ئې د ماسخوتنه د سپوږمۍ په رڼا کښې کوي ـ ګڼ ماشومان د يو بل لاسونه اونيسي او يوه لويه حلقه يا دائره جوړه کړي ـ د اګو يا ګډې شوي ـ همدغه ګډو ته آړې بګړې وائي ـ د حلقې په مېنځ کښې يو کس شر مخ يا لېوۀ شي ـ هغه وار په وار په دې ګډو حمله کوي ـ يوه ګډه ترې نه تښتول غواړي ـ حلقه وال ئې په لتو وهي او ځان ترې خلاصوي ـ

**آړېدل يا اړېدل** :- (آ+ ړې + د ، ل + يا اړ + ې + د + ل) (پ (راوړتيي) مص ، لا) (۱) د يوې خبرې نه اوښتل يا منع کېدل (۲) د څۀ څيز توئيدل (۳) د اوبو مخ بل خوا ته ګرځېدل (۴) ټوپ وهل يا په څۀ څيز اوښتل ـ (ب ، خ) ما : آړ شو ، حا : آړېږي ، ا : آړ به شي ، امر : آړ شه

**آړېدنه** :-(آ+ ړې + دنَ) (پ ، حمص) (۱) د څۀ خبرې نه اوښتنه (آوړېدنه) يا منع کېدنه (۲) د څۀ څيز توئيدنه (۳) د اوبو مخ بل خوا ته ګرځېدنه (۴) ټوپ وهنه يا په څۀ څيز آوښتنه (ب ـ خ) اوړېدنه ـ

**آړېدونکے** :- (آ+ ړې + دون + کے) (پ (راوړتيي) اس ، فا ، مذ ، وا ، ج : اړېدونکي) (۱) د څۀ خبرې نه اوښتونکے يا منع کېدونکے يا اوړېدونکے (۲) څۀ څيز توئيدونکے (۳) د اوبو مخ بل خوا ته ګرځېدونکے (۴) ټوپ وهونکے ، په څيز بل خوا آوښتونکے ـ

**آړېدونے** :- (آ+ ړې + دو + نے) (پ (راوړتيي) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: اړېدوني) (و ـــ آړېدونکے ـ

**آړېدۀ** :- (آ + ړې + دۀ) (پ (راوړتيي) حمص) (و ـــ اړېدنه)

**آړيه** :- (آړ + يَ) (پ ، وز ، ب ، ج ، اس ، ص) (۱) (وز) اختلاف ، ښښتنه ، برخلافي ،لکه '' د سرې سره آړيه شوو '' (۲) (ب ، خ) حاجت من، موتازه ، لکه ''نن يو پيسو آړيه ئې '' (۳) پېوند ـ

**ـــ کېدل** :- (اص) (۱) وز : جنګېدل ، انښتل ، چا سره لاس اچول (۲) ب خ : چا ته موتازه کېدل ، حاجت من کېدل (۳) ګن : د ازغو سره لمن يا پائينځه انښتل (۴) پېوند کېدل ، يو ځاے کېدل ـ

**آزاد يا آزود** :- (آ+ زا + د يا آ+زا+ د يا آ+ زو + د) (فا، آو ، آ ، زاته،پهه : آزات ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : مؤ ، وا : آزاده ، ج : آزادې) (۱) چې په چا د څۀ قسم پابندي نۀ وي ـ څوک چې غلام نۀ وي ـ

سړے آزاد وي خپل ځان بنده کا (خوشحال)

(۲) د قېد نه خلاص ، برې ـ

آزاد آزاد وي عباد به نۀ شي (خوشحال)

(۳) ګستاخ ، بې ادبَ ، (۴) لونډ ، جره ، زلمے چې وادۀ ئې نۀ وي شوے (۵) خپلواک ـ

سړے آزاد وي آز ئې بنده کا (خوشحال)

(۲) بې تعلقَ ، ځان ته ، (۷) بې غمَ ، بې پروا ـ

د جهـان لــه نــوره قېد‌ه نـــور آزاد وۀ
بارې يو د عشق په کار کښې مادرزاد وۀ (حميد شاه و ګدا)

(۸) بد چلن ، د دود دستور يا د نورو پابندو چې ډېر خيال نۀ ساتي ، کاواک ، بې واک ـ

**آزادانه** :- (آ+ زا + دا + نَ) (فا (روسي قاموس) اس ص) (فا (روسي قاموس) اس ص) په آزادۍ سره ، په خلاص مټ ، په ارت زړۀ ، لکه''هغه آزادانه رائې ورکړه''

**آزاد** يا **ازاد خيال** :- (آزاد يا آزاد + خ + يال) (فا (پښتو روسي قاموس) اس مر ، مذ ، وا ، ج : مؤ ، وا : آزاد خياله ، ج : آزاد خيالي) چې څوک مذهبي او رسمي معاملو کښې تنګ نظره نۀ وي ـ هغه څوک چې د دليل خلاف خبره نۀ مني ـ لکه ''ستا ورور ډېر آزاد خيال دے '' ـ

**آزاد** يا **ازاد خيالي** :- (آزاد يا آ+زا+ د+خ + يا+ لي) (پ اس ص) بېباکي، د دود دستور د پابندو نه آزادي ـ

**آزاد** يا **ازاد طبع** :- (آزاد يا آزاد + طَبْ + عَ) (فا و ع ، اس مو ، ص) (۱)د چا په طبيعت کښې چې آزادي وي ـ څوک چې پابندي نۀ مني ـ لکه''زۀ ډېر آزاد طبع يم '' (۲) آزاد طبيعته ، خوشحال ارواح ، بېباک ـ

**آزاد** يا **ازاد طبيعت** :- (آزاد يا آ+زا+د +ط + بي + ع + تَ) (پ، اص) خوش اروا ، هغه څوک چې د ښې طبع خاوند وي ـ لکه''احمد ډېر آزاد طبيعته بنيادم دے''

**آزاد** يا **ازاد مزاج** :- (آزاد يا آزاد +م + زا + جَ) (فا ، اس ، مر ، مذ ، وا، ج، مؤ ، وا : آزاد مزاجه ، ج : آزاد مراجې) (و ـــ آزاد طبع)

**آزادول** يا **ازادول** :- (آ +زا+ د+ وُل) (پ ، مص ، مت) (۱) پرېښول ، خلاصول ، برې کول ، د قېد نه پرانستل ، قېد نه آزادول ، (۲) د يو منصب نه لرې کول، رخصتول ، برخاست کول ـ (۳) چاته د خبرو اجازت ورکول ، څوک په خپلې خوښې پرېښول ، څوک خپلې خوښې ته پرېښول ، د خپلې مرضۍ اجازه ورکول (۴) د ښځې طلاقول ، ښځې ته طلاق ورکول ـ ما : آزاد کۀ ، حا : آزاد وي ، ا : آزاد به کي ، امر : آزاد که ـ

**آزاده** يا **ازاده** :- (آ+زا + د يا آ+زا+دَ) (پ (روسي قاموس) پهه: آزاته اس ص ، مؤ ، وا ، ج ، آزادې) (۱) د آزاد مؤنث (۲) د خوښې مېرمن ، د خپل مخ د خپلې رضا ـ

ستا په راغله د باغ اونې زر رېزي کا
ســروه تـــا د بــار له باره کړه ازاده (عبدالقادر)

(۳) طلاقه کړې ، پرېښولې شوې ښځه ـ لکه :''کونډه اوس آزاده ده '' ـ

**ـــ آزادي** :-(اص) پوره آزادي ، مکمله آزادي ، د هر لوري نه آزادي ، بېخي آزادي ـ

**آزادي** يا **آزودي** :- (آ+زا + دي يا آ +زا + دي يا آ +زو+ دي) (فا ، اس ص، مؤ ، وا ، ج ، آزادي يا آزادۍ) (۱) خلاصے ، رهائي ، د آزادېدو حالت، دقېد بند يا مرئيتوب نه وتل ـ

د ازادو ازادي ده له اَلستَ (خوشحال)

(۲) بې فکري ، بې پروائي ، بې غمي ـ

ازادي ده يېه ساده سپينه جامه کښې (خوشحال)

(۳) خپلواکي ، خود اختياري ـ

ازادي تر بادشاهۍ لاتېرے کا (خوشحال)

(۴) بې باکي ، لکه:" زما ددۀ سره آزادي ده " .

**آزادېدل** یا **آزادېدل** یا **ازودېدل** :- ( آ +زا+ دي + دل یا ا+زا+ دي +ل یا ا+زو+ دي+ دل ) ( پ ، مص لا ) (۱) د قېد نه وتل ، خلاصېدل ، بري کېدل ، رهائي کېدل ، لکه:" ددې قیدي آزادېدل په کار دي" (۲) د ښځې طلاقېدل ، لکه:" دا ښځه آزادېدل غواړي "

**آزار** یا **اَزار**:- ( آ +زا+ ر یا اَ + زا + ر ) ( فا (روسي قاموس) اص ، مذ ، وا) (۱) تکلیف ، دړد .

د ازار نه چا بازار موندلے نۀ دے (رحمان بابا)

په خولۀ په لاس به هېڅوک ازار نۀ کا (خوشحال)

(۲) ښېره ، بد دُعا .

چېرته اونۀ کړي بابا راته ازار (حمید)

(۳) ناجوړتیا ، بیماري ، لکه:" فلانے په دې آزار کړېږي "

د بامې په کور دوي د کوړ ازار (برهان)

**ـــ رَسَول**:- (اص) تکلیف ورکول ، عذابول ، ربړول ، کړول . (وـــ آزارول)

**ـــ رسېدل** :- (اص) تکلیف رسېدل ، عذابېدل ، ربړېدل ، دړدېدل، کړېدل، لکه : " په تا مې آزار رسېدل پېرزو نۀ دي "(وـــ آزارېدل)

**ـــ کښل** :- (اص) (۱) څۀ داسې غلط کار کول چې بل څوک پرې خفه شي . او ښېرې یا بد دُعا ورته وکړي . (۲) ځان ته ارومرو په خپله تکلیف جوړول . لکه :" پرېږده آزار کښل ښۀ نۀ دي "

**آزارول** یا **اَزارول**:- ( آ +زا+ ر+ ؤ + ل یا اَ + زا + رَ + ؤ + ل ) (پ، مص، مت) تکلیف ورکول ، دړدول ، عذابول ، لکه :" ... بلکې ددۀ سړي به ئې هم آزارول " ما: آزار کۀ ، حا : آزاروي ، ا : آزار به کې یا آزاره وي به ، امر : آزار که یا وآزار وه .

**آزارونه** یا **اَزارونه**:- ( آ +زا+ ر+ ؤ + نَ ، یا اَ + زا + رَ + ؤ + نَ ) (پ، حمص) تنګونه، عذابونه ، دړدونه ، د تکلیف ورکولو کار . لکه" هسې آزارونه کوې " .

**آزار** یا **اَزاروهلے**:- (آزار یا اَ + ز+ا + ر+ و+ هـ + لَے ) (پ ،اس ،مف ، مذ ، وا ، ج : آزاروهلي ) هغه څوک چې په بدو کړو د چا ښېرې پرې لګېدلې وي . چا چې ځان ته په خپله تکلیف ګټلے وي .

**آزاري** یا **اَزاري**:- (آ+ زا + ري یا +اَ + زا + ري ) (پ ، اس ، فا، ع، مذ ، مؤ ، وا ، ج : آزاریان ) (۱) آزار رسوونکے ، دړدوونکے ، تکلیف ورکوونکے ، لکه :" هغه ډېر آزاري دے " .

جراحت د زړونو کاندې ازادي دے (حافظ الپوري)

(۲) بدنصیب ، بد قسمت (۳) د مینې ښېره لکه: "آزاري دلته راشه"

**آزارېدل** یا **اَزارېدل**:- (آ+ زا + رې + دل یا +اَ+ زا + رې + دَ + ل ) (پ ، مص ، لا) تکلیف رسېدل ، عذابېدل ، دړدېدل ، چې آزار ورته ورسي . لکه : "ستا آزارېدل مې خوښ نۀ دي " ما : آزار شۀ ، حا: آزارېږي ، ا : آزار به شي .

**آزارېدنه** یا **اَزارېدنه**:- (آ+ زا + رې + د + نَ یا +اَ + زا + رې + دَ + نَ ) (پ، حمص) آزار رسېدنه ، دړدېدنه ، عذابېدنه ، چاته تکلیف رسېدنه ، لکه " په رور مې آزارېدنه نۀ پېرزو کېږي "

**آزاده** یا **اَزارده**:- ( آ + زُ + ر+ دَ یا اَ + زُ + رْ + دَ ) (فا، ص ) خفه ، زهیر ، پرېشانه، ناراض ، غمجن .

چې دا هسې ازرده شې بې سببه (عبدالقادر)

**ـــ خاطر** :- (اص) خفه، مغموم، غمجن، رنجیده ، ناراض ، مرور .

**ـــ کول** :- (اص) خفه کول ، غمجن کول ، ناراضول ، مرورول ، ناراضه کول .

**ـــ کېدل** :- (اص ) خفه کېدل ، غمژن کېدل ، غمګین کېدل ، ناراضېدل ، مرورېدل

**آزردګي** یا **اَزاردګي**:- (آ + زُ + ر+ دَ+ ګيْ یا اَ + زُ+رْ + دَ + ګيْ ) (فا ، ص، مؤ ) خفګان ، ناراضګي ، زړۀ بداوے ، مرورتیا .

**آزمائش** یا **اَزمائش**:- (آ ز + ما +یشْ یا اَ + زْ + ما+یَشْ ) (فا ، آو : اېزما ، اس مذ ، وا ، ج : آزماېښونه ) ازمېښت ، امتحان ، کتل ، معلومول تحقیق ، تجربه .

شاه جهان بادشاه د چا په بند بندي دے
راشــــه ګــوره ازمــائش د زمــانې (خوشحال)

**آزمائېنت** یا **ازمائښت**:- (آ + ز + ما + یَخْت یا یَښْت ) (پ، ص ، مذ ، وا، ج: آزماېښتونه ) (وـــ آزمایش)

**آزمائل** یا **آزمویل**:- (آ زْ + ما+ یَلْ یا آز + مو + يَ + لْ ) (اف ، پ (سیند) مص، مت) ازمېیل ، کتل ، معلومول ، تجربه کول ، آزمېښت کول لکه :" څۀ آزمائل کوې " ما : اوآزمایه ، حا : آزمائي ، ا : وُبه آزمائي ، امر : آزمایه .

**ـــ کېدل** :- (اص) ازمائلے کېدل ، ازمېښت کېدل ، په پوهه کښې راتلل ، په علم کښې راتلل ، تجربه کېدل .

**آزمائلے**:- (آز + ما + یَلے ) (پ ، اس ، مف، مذ، وا ، ج : آزمائلي ) تجربه کړے شوے ، آزمامېئلے ، آزموده ،

لــکه بـــاد صبــا راشي زر ګـــذر کا
ما خوشحال چې ازمایلے دے میثاق ستا (خوشحال)

**آزماینه**:- (آز + ما + یْنَ ) (پ (راورټي) حمص) آزمېښت ، د آزمایلو کار لکه " په ما آزمائنه خله کوې "

**آزمایونکے**:- (آز + ما + یُونْ + کَے ) (پ (راورټي) اس ، فا ع ، مذ ، وا، ج: آزمایُونیک ) آزمېښت کوونکے ، تجربه کوونکے ، لکه"وخت د سړي ښۀ آزمایونکے دے " .

**آزمایونے** :- (آزْ + ما + یُو + نے ) (پ (راورټي) اس ، فا ع ، مذ، وا، ج:آزمایوني ) (وـــ آزمایُونکے)

**آزمودل**:- (آز + مو + د+ ل ) (اف : پ (سیند) مص ، مت ) آزمېیل ، ازمېښت کول، آزمویل کول.

**آزموده** یا **آزموده**:- (آ+ز + مُوْ + دَ یا اَ + زْ + مُوْ + دَ ) (فا ، ص) آزمائلے ، تجربه کړے شوے .

څو ازموده نۀ شي په کاروبار کښې (خوشحال)

**ـــ خبره** :- (اص) آزمائلې خبره ، تجربه شوې خبره ،

دا خبره ازموده په بیا بیا (حمید)

**آزموده کار** یا **آزموده کار**:- (آ+ز + مُوْ + دَ +کا+ر یا اَ+زَ+مو+ دَ +کا+ر) (فا، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج، مؤ ، وا: آزموده کاره ، ج: آزموده کارې) پوهه ، تجربه کار ، خبر ، بلد

**آزمېښت**:-(آ+ز+مې+خْ یا مې+شت) (پ،فا: آزمائش،حمص) (وـ آزمائش)

زمانــه په خلقو هسې ازمېښت کا
چې یوسف د قبطیانو زرخرید شۀ (خوشحال)

**آزمېیل**:- (آ+ز+مې+یَل) (اف :پ (سیند) مص ، مت) (وـ آزمائل)

**ـــ کېدل** :- (اص) (وـــ آزمائل کېدل)

**آزقه**:- (آ+ زو + قَ) (فا ، اس ، مؤ ، وا ) (وـــ آذوقه)

**آس**:- (آ + س) (اف ، پ (سیند) فا: اَسْپْ ، اس ، مذ ، وا ، ج: آسونه ، مؤ: وا : آسپه ، ج: آسپې) اس ، د اسپې نر.

اس د خانانو دے د ښو کسانو دے
نـهٔ د نـــادارو د مفلســـانو دے (خوشحال)
پلار ئې درسته ورځ په ښکار وژني اسونه (خوشحال)

**ـــ پرول** :- (اص) (ب +خ) اص ، اس زغلول ، اس پره کول ، اس په منډه کول ، اس له منډه ورکول ، اس ترپول ، لکه:''اس پرول څهٔ وو ، ځان مړول وو ''

**ـــ پره کول** :- (خل) (اص) (و ـــ پرَول)

**ـــ پره کېدل** :- (اص) (و ـ اس پرېدل)

**ـــ پرېدل** :- (اص) اس زغلېدل ، اس په منډه کېدل ، اس تېز ورړه کېدل

**ـــ په دوؤ پښو کېدل** :- (اص) اس په دوو پښو وُدرېدل ، د اس ورومبي دوه پښې اوچتول.

**ـــ په دو چوکول** :- (سو) (اص) اس په دوو پښو وُدرول ، کله چې سور په مست او تیار اس سور شي او واګې ئې راکاږي نو هغه خپلې ورومبۍ دوه پښې اوچتې کړي. لکه :'' اس په درچوکول د مستۍ نخښه ده ''.

**ـــ پُونده کول** :- (اص) اس ته پونده ورکول ، اس زغلول ، اس ورړه کول ، د تېز زغلولو دپاره اس په پونده وهل ، اکثر سوارهٔ د پېزار سره د اوسپنې یو مېخ غوندې لګوي چې په هغه ورو ورو اس په تښې کښې پرې وهي او دغه شان ئې زغلوي. لکه ''اس پُونده کول د ښهٔ سوارهٔ کار دے ''

**ـــ ترپول** :- (اص) (و ـــ پرول)

**ـــ ترپېدل** :- (اص) (۱) (و ـــ اس پرېدل) (۲) (خل +یو) په ځاے ولاړ اس چې پښې ترپوي.

**ـــ زغل**:- (اص) د اس منډه ، د اس ترپ.

**ـــ زغلول** :- (اص) اس ورړول ، اس پرول ، اس ته منډه ورکول اس په ترپ بوول ، لکه :''مانه اس زغلول نهٔ کېږي ''

**ـــ زغلېدل** :- (اص) (و ـــ اس پرېدل)

**ـــ ورړه کول** :- (اص) (و ـــ اس پرول)

**ـــ ورړه کېدل** :- (اص) (و ـــ اس ورړه کېدل)

**ـــ وهل** :- (اف) لغ : اس ته پونده ورکول. (اص) (۱) د اس د سورلۍ چل ورتلل (۲) د خپلې شهسوارۍ تېرې ورځې یادول

**تازي ـــ** :- (اس) عربي اس ، تېز او ښهٔ اس ، اصیل یا د ښهٔ ذات اس ، عراقي اس

په جهان کښې چې پرې ننګ و نام ګټه شي
هغه دي د جنګ پـــه ورځ تـــازي اســونـــه (خوشحال)

**عراقي ـــ** :- (اس) د ښو اسونو یو قسم چې نسل ئې په عراق کښې پېدا شوے وُ.

**عربي ـــ** :- (اس) (و ـــ تازي اس)

**کالامے ـــ** :- (سو) اس. یرغه ټټو ، ورکوتے اس ، ورکوتے ټټو ، غرئیز اس چې د قد بُت نه ورکوټے وي.

**آسام**:- (آ + سا + م) (ه ، اس ، مذ ، وا) د بهارت (هندوستان) یوه صوبه چې د بنګله دېش نمرختیځ اړخ ته پرته ده. لکه: '' د آسام چائې مشهورې دي ''

**آسامے**:- (آ + سا + مے) (پ تر ، ص، مذ ، وا، ج : آسامیان) مؤ ، وا، ج: آسامۍ ) د آسام سړے ، د آسام د وطن وسېدونکے ، لکه:''دا ځوان آسامے دے ''.

**آسان**:- (آ + سا + ن) (فا+ پهه ، آسان ، ګېلکي ، آسان ، اس ، ص ، مذ ، وا، ج ، مؤ ، وا: آسانه ، ج : آسانې) اسان چې ګران نهٔ وي. بې تکلیفه ، بې ربړه ، بې کړاوه ، بې جنجاله ،

چې هر دور ئې و اودو ته هوس کاندې
د زربفتـــو هـنر چـــېرې دے اســـان (خوشحال)
خبرې ګرانې دي چېرې اسانې دي (خوشحال)

**ـــ اسان** :- (اص) ډېر اسان ، زيات اسان ، سوکه سوکه.

که ناصح ګرانې د عشق ګڼي اسانې
امـوخته اسان اسان وي نـهٔ دے ګرم (خوشحال)

**ـــ کول** :- (اف) (اص) (و ـــ اسانېدل)

**آسانتیا**:- (:- (اف) (اص) (و ـــ اسانول)

**ـــ کېدل** آ+سا+ن+ت+یا ) (اف :پ (سیند) حمص،مؤ) اسانتیا،اساني ، اسانے ، اسانتوب ، لکه :''ستا په وجه ماته اسانتیا پېدا شوه''

**آسانول**:- (آ + سا + نَ + و + ل ) (اف ، پ (سیند) مص ، مت) (۱)اسانول سوکه کول ، اسانتیا پېدا کول ، ګرانوالے لرې کول ، لکه :''مګر لوے مراد له تصنیفَ ددې کتاب آسانول ددې ژبه وهٔ''(ګلشن روه) (۲) د څهٔ څیز قیمت کمول ، ارزانول ، لکه ''د غنمو اسانول زمیندار ته نقصان رسول دي '' ما :آسان کړهٔ ، حا :آسانوي ، ا :آسان به کي ، امر :آسان که

**آسانونه**:- (آ + سا + نَ + و + نَ) (پ + حمص) اسانونه ، د اسانولو کار، د سوکه کولو کار.

**آسانه**:- (آ + سا + نَ یا ا+ سا + نَه) یا اَ + سو + نَ) (پ ، ص ، مؤ ، وا، ج:اسانې) سوکه ، چې څهٔ ګرانه په کښې نهٔ وي. د ګران ضد ، چې کړاؤ په کښې نهٔ وي

**ـــ اساني** :- (اص) (۱) ډېره آساني ، زیاته آساني ، ډېر سوکه (۲) ارزاني ، د نرخ کمي ، پرېواني

**ـــ اسانتیا** :- (اص) (و ـــ اسانه اساني)

**ـــ خبره** :-لغ :سوکه خبره،اسونه خبره،اص :اسان کار یا کارونه

**په ـــ** :- (اص) آسانۍ سره ، سوکه ، په لږ تکلیف ، بې تکلیفه ، بې کړاوه.

په اسانه به خړوب نهٔ شي په وصل
دے د هجـر هـــاړ وهلے زما روح (حمید)

**آساني**:- (آ + سا + ني) (پ (روسي قاموس) پهه (اسانیح) حمص ، مو) (و ـــ اسانتیا ، لکه : ماته اساني پېدا کړه.)

**آسانېدل**:- (آ + سا+ نې+د ل ) (ف،پ (سیند) مص لا) (۱) اسانېدل، سوکه کېدل ، اسان کېدل ، اساني پېدا کېدل ، لکه''د سبق آسانېدل ''. (۲) قیمت کمېدل ، بیه راپرېوتل ، ارزانېدل ، نرخ غورځېدل. لکه ''د لوبنو اسانېدل په کار دي '' ما: اسان شو، حا : اسانېږي ، ا: اسان به شي

**آسائش**:- (آ + سا +یش یا یِش) (فا، اس ، مذ ، وا، ج : اسایشونه) اسائش ، ارام، سوکالي.

چې ئې شا کړه د دنیا و اسائش ته
هـــم هغــه کا اســائش د زمـــانې (خوشحال)

**آس بدلي**:- (آس +بَد +لي) (اف: پ (قاموس) اس، مو وا) خربدلي، د وړو یوه لوبه چې ورته کانې کړپ هم وائي.لکه : ''مونږ به سبا د اس بدلي لوبه کوؤ ''

**آسبن**:- (آس + بَنْ) (پ (سو) اس ، مذ، وا) دير په رياست کښې د اندېلزوعلاقه ، په دې علاقه کښې د بُدهـ د زمانې زړې ورانې مانۍ او کنډرې دي۔

**آسبون**:- (آس + بُو + ن) (اف (سيند) اس ، مذ ، مو ، ج: آسبانهٔ ، مؤ ، وا : آسبنه، ج: آسبنې) د اسونو ځروونکے ،د اسونو پيروونکے يا ستونکے ، لکه : ''آسبون اسپې ځروي''

**ـــ کول** :- (اص) (اف) د چا سرې د اسونو ځرولو يا ساتلو په کار لګول۔ چاته داسونو کار سپارل ، لکه :'' ستا آسبون کول غته غلطي ده ''۔

**ـــ کېدل** :- (اص) د چا د اسونو د ساتلو يا ځرولو کار شروع کول۔ د آسبون کېدلو کار ته غاړه کښېښودل۔لکه :'' آسبون کېدل څۀ زور غواړي ''

**آسبونول**:- (آس + بو + نَ + ؤ + ل) (اف ، پ (سيند) مص ،مت) (و ـــ آسبون کول) ما : آسبون کۀ ، حا : آسبونوي ، ا : آسبون به کې امر : آسبون که۔

**آسبونېدل**:- (آس+ بو +نې +د + ل) (اف :پ (سيند) مص ، لا (و ـــ آسبُون کېدل)

**آسبه**:- (آس + بَ) (اف: پ (سيند) اس ، مذ ، وا) (و ـــ آسبون)

**ـــ کول** :- (اف) (اص) (و ـــ آسبون کول)

**ـــ کېدل** :- (اف) (اص) (و ـــ آسبون کېدل)

**آس پنډوس**:- (آس + پَنْ + ډو + س) (اف : پ (سيند) فا: چوګان ، اس مر ، اص) پولو ، د پولو لوبه ، دا يوه لوبه ده چې په اسونو سوارۀ د لرګي لوے لوے ټپوري په لاس يو ورکوټے غنډسکې په زوره زوره وهي او دا کوښښ کوي چې د يو بل نه ئې واخلي او د مخالفې ډلې د ګول نه ئې باهر وباسي۔په دې لوبه کښې آسونه ډېر زر ستړي کېږي ځکه خو هر يو لوبغاړے دوه درې اسونه ځان سره ساتي۔

**ـــ کول** :- (اف) (اص) د پولو لوبه کول ، د آس پنډوس لوبه کول۔لکه : ''آس پنډوس کول د ځوانانو کار دے''

**ـــ کېدل** :- (اف) (اص)د پولو لوبه کېدل ، د اس پنډوس لوبه کېدل ، لکه '' د باران په وجه آس پنډوس کېدل ګران دي''

**آس پنډوکے**:- (آس + پَنْ + ډو +کے) (اف : پ (سيند) اس ، مر، مذ وا ، ج : آس پنډوکي) قنجوغه ، کنجوغه ، خورجي ، خورجين ، د آس د سوارۀ کځوره هغه کځوره چې سوارۀ خپل د سفر د ضرورت سامان په کښې اېښے وي۔او د زين روستو ئې تړلي وي۔لکه ''خپل آس پنډوکے وتړه ''

**آسپل**:- (آس + پَ + ل) اف ، پ (قاموس ، مص مت) جمع کول ، غنډول ګړدول ، يو ځاے کول ،

بـــادشاهان کخزانې وبلـــه اسپي
دا ګـــدائے مې له درومه اسوده دے (خوشحال)

ما : ؤآسپه ، حا : آسپي ، ا : وُبه آسپي ، امر: وُآسپه۔

**آسپه**:- (آس + پَ) (اف: پ (سيند) اس ، مو ، وا ، ج : آسپې) د آس ماده لکه : ''توره آسپه راوله''

**آسپَه**:- (آس + په) (پ ، خ ، خل ، يو) اس ، ص) د جګر ګرمي ، د اينې ګرمي ، په دې رنځ کښې کله کله په پوزه وينه هم راشي۔

**آسپيېل**:- (آس + پې + ئيل) (پ (اس) مص مت) په تسپو ، لاس خوندو يا امېلونو مرۍ يا دانې پېيل يا پېرل ۔ لکه : ''په مزۍ کښې ملغلرې آسپېيل'' ما:وآسپېيل، حا: آسپېيي، ا: وُبه آسپېيي ، امر: وُآسپېيه۔

**آستاز والے**:- (آس+ تاز + وا +لے) (اف: پ (سيند) اس ص) استازوالے، استولے کېدل ، استازے کېدل۔

**آستازے**:- (آس+ تا+ زے) (اف : پ (سيند) اس ، مذ، وا، ج : استازي) استازے، رالېږلے شوے۔

**ـــ کول** :- (اف) (اص) استازے کول ، خبر رسوونکے ، جوړول۔

**ـــ کېدل** :- (اف) (اص)استازے کېدل،خبررسوونکے، جوړېدل۔

**آستان يا آستانه**:- (آ س + تا + ن يا آس + تا + نَ) (فا ، اس ، مذ، وا، ج: آستانې) (۱) د ور دُرشل۔ (۲) کور ، مکان ، مانۍ۔

د غمونو استانه شوه
و پېغور ته ننبانه شوه (صدر خان)

(۳) مزار ، زيارت ، مقبره ، درګاه ، روضه ۔

چې قبله د هر نبي د هر ولي ده
استانـــه د محمـــد ص عربي ده (حميد)

**آستانه دار**:- (آس + تا + نَ + دار) (فا ، اس ، مر ، وا ، ج : آستانه داران، مؤ ، وا : آستانه داره ، ج : آستانه دارې) آستانه دار ، آستانه لرونکے ، د آستانې خاوند ، د ملايانو ، سيدانو ، پيرانو يا مياګانو د کورنۍ غړے ، د بزرګۍ يا د مرتبې خاوند ، لکه :'' آستانه دار نه عالمَ دعا غواړي ، جنګونه ورسره نۀ کوي ''۔

**آستاونه**:- (آس + تا + و + نَ) (پ (راورټي) حمص) (۱) اوسېدنه ، دېره کېدنه ، آستوګنه کونه ، (۲) څۀ څيز د يو ځاے نه بل ځاے ته لېږنه۔

**آستل**:- (آس + تل) [ پ (ب ، خ ، وز) ، مص ، مت ] اېستل ، وېستل، اُباسل ، لکه : '' د کټوۍ نه لاونړ آستل ، قميص آستل ، د نوکرۍ نه آستل''۔ ما : وُياسته ، حا : اُباسي ، ا: وُبه باسي ، امر ، وُباسه

**آستول**:-(آس + تَ + وُ+ ل) [اف ، پ (سيند) مص ، مت) (۱) استول، لېږل ، لژل ، د يو ځاے نه بل ځاے ته لېږل ، لکه : ''حال آستول ، خبر آستول ، هلکان مدرسۍ ته آستول ، سلام آستول'' (۲) اوسول ، هستول ، دېره کول ، استوګنه پرې کل ، مېشتۀ کول ، ما: واستاوۀ حا : آستوي ، ا : وابه ستاوي امر : واستوه۔

**آستولے**:- (آس + تَ + وْ + لے) [ پ (راورټي) اس مف ، مذ ، وا، ج: آستولي] استولے، استولے شوے، لېږلے شوے ۔لکه :''ما ورته ځواب آستولے دے''

**آستونه** :- (آس + ت + وُ + نَ) [ پ (راورټي) حمص ] استونه ، د استولو کار،د څۀ څيز لېږنه ، لکه : '' جرګې ته د پوهه سړي آستونه بنۀ ده''

**آستوونکے**:- (آس + ت + وو + ن + کے) [ پ (راورټي) اس ، فا ، ع ، مذ ، وا ، ج : آستوونکي ] (۱) استوونکے ، لېږونکے ، هغه څوک چې د يو ځاے نه بل ځاے ته څۀ څيز لېږي۔لکه : '' زما آستوونکے تۀ ئې ګني زۀ نۀ تلم '' (۲) اس مف ، يو څيز بل ځاے ته يا بل چا ته د استولو جوګه ، څۀ څيز چې بل ځاے ته ضروري لېږونکے وي ۔ لکه:''دا کتاب نن آستوونکے دے''

**آستوونے** :- (آس + تَ + وو + نے) [ پ (راورټي) اس ، فا ع ، مذ ، وا ،ج: آستووني ] (و ـــ آستوونکے)

**آستېدل**:- (آس + تې + د + ل) [پ (راورټي) مص ، لا] استېدل ، وسېدل آبادېدل، مېشت کېدل ، په يو ځاے کښې دېره کېدل ، استوګنه کول ، لکه : '' دلته زما آستېدل ګران شول '' ما : آستېدۀ ، حا: آستېږي ، ا : وُبه آستېږي ، امر : وآستېږه۔

**آسېدلے**:- (آس + تې + د + لے) [پ (راورټي) اس ، فا ع، مذ ، وا ، ج : آستېدلي] آستېدلے ، اوسېدلے ، استوګن شوے ، دېره شوے ، آباد شوے۔لکه :

"زۀ دلته آستېدلے وم"۔

**آستېدنه**:- (آس + تې + د + نَ) [پ (راورټي) حمص] آستېدنه ، دېره کېدنه ، اوسېدنه ، آبادېدنه ، په يو ځائے کښې مېشتېدنه ، لکه:"اوس دلته آستېدنه ضروري ده"

**آستېدونکے**:- (آس + تې + دو + ن + کے) [پ (راورټي) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : آستېدونکي] آستېدونکے ، اوسېدونکے ، دېره کېدونکے هغه څوک چې په يو ځائے کښې وسېږي۔لکه : " دلته څوک آستېدونکے شته ؟"۔

**آستېدونے**:- (آس + تې + دُو + نے) [پ (راورټي) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: آستېدوني] (و ـــ آستېدونکے)

**آستېدۀ**:- (آس + تې + دۀ) [پ (راورټي) حمص] (و ـــ آستېدنه)

**آسره**:- (آس + رَ) [پ (راورټي) ه : س : آسْرَیَ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: آسرې) (۱) باور ، تکيه (۲) امېد ، طمع (۳) ځائے ، دېره ، کور ، د پناه ځائے (۴) مشر ، ملگرے ، مدد کوونکے ، مرستيال

ـــ **کول** :- (اص) مص تر ، امېد کول، طمع کول ، د چا پناه اخستل لکه : "آسره خو د خدائے ښه ده"۔

ـــ **کېدل** :- (اص) مص تر، آسره کېدل، اُمېد کېدل، طمع کېدل، تکيه کېدل

**بې آسرې** :- (اص) بې تکيې ، بې مدده ، بې ياره مددگاره ، چې څۀ آسره ئې نۀ وي۔

**آسمان**:- (آس + ما + ن) (فا ،ع ، سماء ، پهه ، آو : آسمان ، اس ، مذ ، وا، ج: آسمانونه ، اسمونونه ، آسمونينه) آسمان ، اوچت ، چگ ، هسک ، بر ۔

د اسمان د عاشقانو سره کنست دے
هر زمان ئې په هجران سره غمناک کا (خوشحال)

ـــ **برېښېدل** :- (اص) آسمان پرقېدل ، آسمان کښې برېښنا کېدل ، په آسمان کښې د بجلۍ چڼ گېدل۔

ـــ **بڑه کېدل** :- (اص) زيات باران ورېدل ، کله چې په ژمي کښې څو څو ورځې په مخ باران ورېدل شروع شي ۔ نو خلق وائي چې آسمان رابڑه شوے دے۔آسمان سُورے کېدل ، جړی کښېوتل ، جړی انښتل۔

ـــ **پرچيه کېدل** :- (اص) لُغ : آسمان پر راغوټه کېدل ، آسمان پر راوغورزېدل ، اص : په بلا او مصيبت کښې گېرېدل۔

ـــ **پرقېدل** :- (اص) (و ـــ آسمان برېښېدل)

ـــ **په تيرو ويشتل** :- لُغ : آسمان په کاڼو ويشتل ، اص : لوئي کول، کبر کول، ځان لوے لوے کول، لافې کول، ډوزې ويشتل۔

ـــ **په ټيزونو ويشتل** :- (اص) (۱) لوئي کول ، کبر کول ، غرور کول ، ځان خواه مخواه په څۀ کښې حسابول ، (۲) دروغ وئيل ، مبالغه کول ، په خبره کښې خوړوالے يا خوږلښت پيدا کولو دپاره ډوزې ويشتل۔

ـــ **په سر اخستل** :- لغ : اسمان په سر پورته کول ، اص : ډېر شور زوږ کول ، ډېره ناقلاري ظاهرول۔

ـــ **په گټو ويشتل** :- لغ : آسمان په کاڼو ويشتل ، اص : لوئي کول ، ځان هسې لوے لوے کول ، ناشونې خبرې کول ، ناشولتې ويشتل ، لاپې شاپې ويشتل ، لوئي دعوې کول ، د ځان نه زياتې خبرې کول ، بې هوده خبرې کول ، داسې خبرې کول چې د منلو نۀ وي۔

ـــ **په لتو وهل** :- (اص) لوئي کول ، کبر کول ، د ځان نه لويه خبره کول ، داسې وېنا کول چې سرے ئې پوره کولے نۀ شي۔

ـــ **په لوټو ويشتل** :- لغ : آسمان په کاڼو ويشتل ، اص : ناشونې خبرې کول،لوئي کول ،ځان هسې لوے لوے کول، لافې کول۔

ـــ **ته سترگې نيول** :- (اص) (۱) بې کاره کښېناستل ، څۀ کارنۀ کول ، تياره خوړل ، د بل په اسره کښېناستل (۲) د رحمت د باران په طمع کښېناستل (۳) دُعا يا فرياد کول۔

ـــ **ته کتل** :- (اص) (و ـــ آسمان په لتو وهل)

ـــ **تنبدل** :- (اص) په آسمان کښې تن گړزا کېدل ، آسمان غرېدل يا غورېدل ، آسمان گړزېدل۔

ـــ **ته پښې نيول** :- (اص) لوئي کول ، کبر کول ، ځان لوے حسابول ، لکه :" د چتې په شان آسمان ته پښې نيول"

ـــ **ته توکل** :- لغ : آسمان طرف ته توکاڼې توکل ، لاړې توکل۔ اص : (۱) ځان غټ حسابول ، لوئي کول ، کبر کول ، د ځان نه لويه خبره کول (۲) داسې کار کول چې خپله په کښې د نقصان ويره وي۔

ـــ **ته ختل** :- لغ : پاس آسمان ته تلل ، اص : (۱) لوئي موندل يا حاصلول (۲) د نۀ کېدونکي کار وېنا کول ، داسې څيز يا کار په حقله خبرې کول چې د کېدو نۀ وي (۳) د څيزونو نرخ گرانېدل ، نرخونه ختل ، (۴) په غصه کېدل، زيات گرمېدل، په غصه کښې خبرې کول۔

ـــ **ته خولۀ وازول** :- [پ(سو) اص] (۱) ښېرې کول،آزار کول ، بد دُعا کول (۲) ثنا وئيل ، حمد و ثنا وئيل ، (۳) بېکارې ، بې کسې۔

ـــ **ته کتل** :- لغ : د آسمان په لور کتل ، اص : (۱) حېران پاتې کېدل ، هک دک يا هک پک پاتې کېدل ، اريان دريان کېدل ، په بحث کښې بې ځوابه کېدل ، په بحث کښې د غصه کېدو په وخت پاس کتل ، (۲) د باران امېد ساتل ، (۳) دخدائے تعالیٰ نه دُعاغوښتل (۴) کبر او لوئي کول (اف)

ـــ **چڼ کېدل** :- (اص) (و ـــ آسمان برېښېدل)

ـــ **دارو ورکول** :-(اص) هېڅ دارونۀ ورکول،ښخې علاج نۀ کول۔

ـــ **درو ته رسېدل** :- (سو) لغ : آسمان لارو ته رسېدل ، اص : ډېر اوچت يا پورته تلل ، ډېر پاس تلل ، د غرونو اوچتو درو يا سرونو ته ختل ۔

ـــ **راچپه کېدل** :- (اص) لُغ : آسمان راکوزېدل ، اص : خطرناکه واقعه پېښېدل

ـــ **زمکه يو کول** :- (اص) (۱) ډېر زور لگول ، خپلې تېي شلول ، پوره پوره وس کول (۲) ډېر شور زوږ کول ، شور غوغا جوړول

ـــ **سر ورکول** :- (اص) هېڅ نۀ ورکول ، پلانه اسمانه ورکول۔

ـــ **کښې خبرې کول** :- لغ : په آسمان کښې ژغېدل يا غږېدل۔ اص: لوړې او اوچتې خبرې کول ، د کبر نه ډکې خبرې کول ، چگې خبرې کول ، په اوچتو پايو کښې۔

ـــ **مزکه گډل** :- لغ : آسمان په زمکه شمارل ، اص : ډېر زيات بدتميزه کېدل۔

ـــ **نړېدل** :- لُغ : آسمان په زوره ژړېدل ، آسمان ړنگېدل ، اص: ډېره دردناکه واقعه پېښېدل۔

په ـــ **قدم کښېښول** :- لغ : په آسمان پښه کښېښول ، اص: (۱) ډېره لوئي کول ، لوے نظري کول ، ځان اوچت شمېرل (۲) په څۀ کار کښې ډېره ترقي کول ، گټه کول۔

په ـــ **کښې الوتل** :- لغ : په آسمان په هوا تلل ، اص : (۱) ډېره لوئي کول ، کبر کول ، د لويي خبرې کول ۔ (۲) نشه کېدل ، په نشه کښې په ځان نۀ پوهېدل، گنگس کېدل۔

په ـــ **کښې خبرې کول** :- لُغ : په آسمان کښې غږېدل ، اص:لوئي لوئي خبرې کول، لوئي کول ، د کبر نه ډکې خبرې ، ځان لوئي شمارل

**په ـــ کښې ستوري شمېرل** :- لغ : د آسمان ستوري ګڼل یا شمار کول ، اص : ټوله شپه په ویښه تېرول،په غم کښې ډوبېدل، شوګیر کول ، غمجن کېدل، په غم اخته کېدل ، په فکر کښې زنګېدل ، د غم او فکر له کبله ټوله شپه په ویښه تېرول

**په ـــ کښې ګرځېدل** :- لغ : په آسمان کښې ځرخېدل،اص : (۱) لوئي کول ، بډائي کول ، (۲) بې ځایه خبرې کول ، نۀ کېدونکې خبرې کول (۳) زیات نشه کېدل ، د نشې په وجه په چا سر چورلیدل ګنګس کېدل۔ (۴) په چا سخت مصیبت راتلل۔

**په ـــ کښېناستل** :- لغ : بره آسمان ناسته کول،اص : په سودا کښې د څۀ څیز بیه ډېره زیاته ښیل ۔ یو څیز په ډېر اوچت قیمت بیه کول ، تصور او تخیل۔

**ـــ راټیټول** :- (اص) ډېر شور زوږ جوړول ، په چا تنګسیا رابودل ، څوک بې وجې تنګول۔

**ـــ راټیټېدل** :-( اص ) (۱) تنګسیا راتلل،تکلیف پېښېدل،په کړاؤکښې کښېوتل ، ډېر ربړېدل ، (۲) زیاته ګرمي پرېوتل ، ګرمي زیاتېدل۔

**ـــ راکوزول** :- (اص) (و ـــ آسمان راټیټول)

**ـــ راښول** :- لغ : په چا آسمان راغورځول ، اص : چاته نقصان ورکول ، تکلیف ورکول ، زیان رسول ، څوک تنګول۔

**ـــ راپرېدل** :- لغ : په چا آسمان راغورزېدل ، اص : څوک تباه کېدل ، بربادېدل، چاته سخت تکلیف پېښېدل ، چا ته خواري پېښېدل ، په چا د مصیبتونو پېتې زیاتېدل۔

**ـــ ړنګول** :- لغ : آسمان نړول ، اص : په چا تکلیف راوستل ، په چا دب دړکې [درب دړکې] کول ، څوک هسې یرول۔

**ـــ ړنګېدل** :- لغ : آسمان غورځېدل ، اص : چا ته تکلیف رسېدل ، په مصیبتونو کښې ګېرېدل ، په بلا اخته کېدل ، سخت غریب کېدل یا ناداره کېدل۔

**ـــ سره خبرې کول** :- لغ : آسمان سره غږېدل ، اص : (۱) ډېر اوچت ، زیات دنګ ، لوړ او دنګ (۲) نرخ ګرانېدل ، قیمتونه ختل ، د څیزونو بیه اوچتېدل ، دولتمند کېدل۔

**ـــ سره سیالي کول** :- لغ : آسمان سره برابري کول ، اص : ډېر اوچت دنګ او لوړ

وا ړه اونې ئې اسمان سـره سیالي کا
ولې فرق په کښې د اونې د چنار شي (خوشحال)

**ـــ سُورے کېدل** :- (اِص) په یو ځاے زیات ځاځکي ورېدل ، شرک کېدل ، چرک پرېوتل۔

**ـــ غرېدل** :- لغ : د آسمان غر غر کول ، د آسمان ګړېدل ، اص : په آسمان کښې د وریځو ګرز ګروز ، په آسمان کښې تنا ګرزه ، د آسمان تنېدل۔

**ـــ غورېدل** :- (اِص) (و ـــ آسمان غرېدل)

**ـــ کښې ګرځېدل** :- لغ : په هوا تلل ، اص : (۱) ډېره لوئي کول ، ډېر کبر کول۔ (۲) د نشې په حالت کښې ګنګس کېدل ، نشئي ځان داسې ګڼي لکه چې په آسمان کښې ګرځي۔

**ـــ ګړزېدل** :- (اص) (و ـــ آسمان غرېدل)

**ـــ مزکه یو کول** :- لغ : زمکه او آسمان سره یو ځاے کول ،اص (۱) نۀ کېدونکې خبرې کول ، مبالغه کول ، هسې ډوزې ویشتل ، غر ور برابرول۔ (۲) ډېر شر یا جګړه جوړول۔

**ـــ ورېدل** :- (اص) باران کېدل ، ځاځکي کېدل۔

**څوک ـــ ته خېژول** :- (لغ : څوک آسمان ته پورته کول ، اص : څوک په سر خېژول ، د چا ډېره خوشامنده کول ، د چا دومره صفتونه کول چې ځان ترې ورک شي۔

**څښتن د آسمانونو**:-لغ : دآسمانونوخاوندیامالک،اص: خداے تعالیٰ ، الله پاک )

څښتن د زمکې ئې د اسمانونو
د عـرش و فـرش او د جهانونو (خوشحال)

**د ـــ بازار** :- [اپ (ګن) ، اص ] (و ـــ آسمان لار)

**د ـــ پېرې** :- لغ : د آسمان څرخ ، اص : د زمانې ګردش ، د بنۀ بد وخت راتلل

اسمـــان پـېرې لـرې زما پِسرَ
مه ډېر غافل شه مه ډېر بې سرَ (خوشحال)

**د ـــ خبرې کول** :- لغ : د آسمان قیصې کول ، اص (۱) د غېب خبرې کول (۲) د ځان نه زیاتې یا لوئې خبرې کول ، (۳) نۀ کېدونکې خبرې کول ، ناشونې خبرې کول۔

**د ـــ د غاړې خېر** :- لغ : د آسمان د لوریه خېر ، اص : د ښېګړې او آبادۍ دپاره د باران ورېدل۔

**د ـــ ستوري شمېرل** :- لغ : د هسک ستوري ګڼل ، اص (۱) په فکر او تصور کښې زنګېدل (۲) د غم او فکر په وجه خوب نۀ ورتلل ، ټوله شپه ویښ پاتې کېدل۔

**د ـــ ستورے کېدل** :- لغ : د هسک ستورے کېدل ، اص (۱) ښکاره او اوچته درجه او مرتبه لرل ۔ ډېر ښکاره کېدل ، ډېر لوړتیا او اوچتوالے لرل ۔ (۲) په لاس نۀ راتلل ، د قابو نه باهر وتل (۳) په لرې سفر تلل ۔

**د ـــ ستوري ښودل** :- اص : چاته سخته سزا ورکول ، د چا سمول ۔

**د ـــ کټ کېدل** :- اص : د چا په لاس نۀ راتلل ، دومره لرې تلل چې ملاقات ئې ګران وي۔په لرې سفر تلل چې بیا موندل ئې ګران شي

**د ـــ نه اور راورېدل** :- لغ : د هسک نه د اور باران کېدل ، اص (۱) ډېره زیاته ګرمي کېدل ، دګرمۍ زیاتېدل (۲) بمباري کېدل ، ګولۍ ورېدل ۔

**د ـــ نه ښوروا راښکته کول** :- لغ : د هسک نه لاوږ ، پخکړے ، اینګولے یا لامبده بل راکوزل ، اص (۱) ډېر دنګ لوړ کېدل ، هغه څوک چې وُنه ئې لویه وي (۲) نۀ کېدونکے کار کول۔

**د څرمنو ـــ رغول** :- لغ : د څرمنو هسک جوړول ، اص : هېبت راوستل ، ویره راوستل ، هله ګُله جوړول ، تادي کول ، بیړه کول

**د څرمنو ـــ ګړبول** :- لغ : د څرمنو د هسک نه اواز ایستل ، اص:څوک یرول، د چا ډړول ، هېبت ناک او یروونکے آواز ایستل

**د شین ـــ کاڼے** :- لغ : د بې وریځې هسک تیږه ، اص : ناڅاپي آفت، څۀ مصیبت نیامه یا ناڅاپه پېښېدل ، آسماني بلا۔

**ـــ ځاځکے** :- (ـــ تسا+ تس + کے ) [اف ، پ (قاموس) اس ،ص، مذ ، وا ] آسمان ګړینګن ، ګوجے ، ګوجه ، کجګجے ،لعابدار چینجے ، مار غتے۔

**ـــ ځک** :- (ـــ ځَس + کُ) [اپ ، اس ، مر ، اص] آسمان سک ، د آسمان سره سیالي کوونکې قلا ، ډېره دنګه او اوچته قلا ، دومره دنګه قلا چې د آسمان سره خبرې کوي۔

**ـــ ځکالے** :- (ـــ ځَس + کا + لے ) [اپ ، اس ، مذ ، وا ، ج : آسمان ځکالي ) ښاپېرک ، آسمان چکالے ،ښاپېرکرکے ، لکه :"آسمان ځکالے د ماښام په تیرو کښې باهر ته راوُځي "۔

**ـــــ چکالے** :- (ـــ چ + کا + لے) [پ (گن ، مر) اس ، مذ ، وا ، ج: آسمان چکالي] (و ـــ آسمان څکالي)

**ـــــ چوک** :- (ـــ چو + ک) [اف ، پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] آسمان ته نېغ تللے ، عمودي ، آسمان طرف ته چگ شوے.

**آسمانک** :- (آس + ما + نک) [پ ، (کاکاخېل ، محلي) اس ص] (۱)اسماني ، ډېر اوچت، آسمان ته رسېدلے (۲) ګراني یا ګرانوالے لکه : د نرخ اوداسې نور. "نرخ آسمانک شو".

**آسمان کټ** :- (آسمان + ک +ټ) [پ ،اس ، مر ، اص ، مذ ، وا] د بوډۍ کټ ، قطب ستوري ته نژدې اووهٔ ستوري چې د کټ په شکل ښکاري ، په عربي کښې ورته دُبِ اکبر (لوے مېلو) وائي. د آسمان کټ په مدد سره خلق قطب ستورے معلوموي.

**آسمان ګړینګن** :- (آسمان + ګ + ړ + ي + نْ + ګَ + نْ) [اف، پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا] (و ـــ آسمان ښاځکے.

**آسمان لار** :- (آسمان + لا + رْ) [پ ، اس ، مر ، ص ، مؤ ، وا] په آسمان کښې د ګڼو وړو وړو ستورو هغه سپینه لار چې عام خلق ورته د براق د قدمونو نخښې وائي. د پیو لار (صوات)

**آسماني** :- (آس + ما + ني) [فا ، اس ، ص] (۱) د آسمان سره تعلق لرونکے ، په آسمان کښې وسېدونکے ، ډېر اوچت.

جانانه لاړې اسماني شوې
اسمان چې زمکې ته راځي قیامت به وینه (ټپه)

(۲) پاک ، جنتي ، (۳) آسماني رنګ ، د آسمان په رنګ ، سپک شین یا آبي رنګ (۴) ناځاپي ، په قسمت کښې لیکلي شوي.

د بنګش په توره مـات نـهٔ یم باور کړه
د ګنبت په جنګ مې ماتې اسماني ده (خوشحال)

(۵) ډېر اوچت تلونکے څیز.

**ـــــ بخرې** :- لغ : آسمان (حصې) برخې ، اص : د قسمت برخې ، هغه برخې چې د ازل نه مقررې وي. د تندي لیک.

نورې به ئے نهٔ کا هر چې بخرې اسماني دي (خوشحال)

**ـــــ برخې** :- (و ـــ آسماني بخرې)

**ـــــ بلا** :- (اص) ناځاپي تکلیف ، مصیبت یا بیماري ، هغه (تکیف) کړاؤ چې د انسان د طاقت نه بهر وي. لکه : وبا ، زلزله ، طوفان او سېلاب او چله ، نُوز وغېره ، آسماني آفت.

اسماني بلا پرېوځي ناګهانه (خوشحال)

**ـــــ تندر** :- لغ : آسماني بجلي یا برق چې په زمکه پرېوځي. اص : آسماني بلا،مصیبت،ناځاپي تکلیف یابیماري،هېبت راتلل.

تېغ ئې تندر اسماني وهٔ (صدر خان)

**ـــــ تندر راغورزېدل** :- لغ : آسماني بجلي راپرېوتل ، اص : په ناځاپي آفت کښې ګېرېدل،ناځاپه په بیمارۍ یامصیبت کښې اخته کېدل

**ـــــ رنګ** :- لغ : د آسمان په شان رنګ ، اص : سپک شین رنګ ، سپک آبي رنګ. لکه : "زما آسماني کوټ راوړه"

**ـــــ شړک** :- (اص) (۱) آسماني چړک (۲) ناځاپي مصیبت یا تکلیف ، ناځاپي آفت.

**ـــــ کتاب** :- لغ : هغه کتاب چې د آسمان نه راغلے وي. اص : هغه کتاب چې خداوند پاک په چا پېغمبر[۴] نازل کړے وي. لکه زبور، توریت ، انجیل او قرآن پاک ، لکه : "قرآنِ پاک آسماني کتاب دے".

**ـــــ کېدل** :- لغ : اسمان ته ختل ، اص : (۱) ډېر اوچت تلل یا پاس ختل (۲) د لاس نه وتل ، غائبېدل ، په ډېر لرې سفر تلل (۳) سېلانے کېدل (۴) په نشې کښې ستېدل ، دومره نشه کېدل چې هوائي شي یعني په هوا ګرځي ، ګنګس کېدل.

**آسوان** :- (آس+وا+ن) [پ (روسي قاموس)اس، مذ ، وا] د مصر مشهور بند، دا بند د نیل په دریاب (رودنیل) تړلے شوے دے. او ډېر مشهور دے.

**آسوده** :- (آ+سو+دَ) [فا(راورتې)ص،مؤ] (۱) خوشحال،بې فکره، بې غمه

عاشقان له بېش و کمه اسوده دي (خوشحال)

(۲) دمه شوے ، په دمه ، په مزه ، په ارام ، سوکه.

سمندر په اور کښې اوسي اسوده (حمید)

**آسي** :- (آ+ سي) [پ (وز: محلي) ه : اسُوج ، اس ،مذ ، وا] د اسو میاشت ، د هندي کال شپږمه میاشت،لکه :"دِ آسي په میاشت کښې بارونینه وُشول"

**آسې** :- (آ+ سې) [پ (ب ، خ ، وز) ، ص] (۱) مفت ، هسې ، بې قیمت ، لکه : " دا قلم آسې واخله. (۲) بې فائدې ، بې مطلبه ، بې مدعا ، بې توک ، بې موجبه ، اوچ په موچه ، ابس بې ابسه، لکه : " آسې خبرې کوې لګیا ئې" (۳) هسې

**آسې د اسې** :- (آ + سې + دا + سې) [پ (ب ، خ ، وز) ص] (۱) هغسې دغسې(۲) هېڅ بې هېڅه ، بې کاره ، بې مطلبه ، لکه :" اسې داسې ویلې ګرځې".

**آسیمه** :- (آ+ سي + مَ) [ف : پ (سیند) فا ، آسیمه ، ص ، مؤ] اسپه چې وار راوړي. سیمه ، لکه : " دا آسپه آسیمه ده".

**ـــــ کېدل** :- (اص) وار راوړل ، ګرمېدل

**آسیه** :- (آس + یَ) [ع ، اس ، مؤ ، وا] د فرعون د ښځې نوم چې حضرت موسیٰ علیه السلام ئې د نیل دریاب (رود نیل) نه رایستلے او د فرعون په کور کښې ئې پاللے ؤ.

**آش** :- (آ+ش) [فا ، س : آشَ : خوراکه اس ، مذ ، وا] (۱) ښوروا ،یخني ، کیر ، لېټې. د وربشو یا د دالونو اوبهٔ ، اینګولے.

لکه سپې هسې جاروځي
د مغـل پــه اش و نـان (خوشحال)

(۲) (ب ، خ) د خر د حصارولو یا ودرولو دپاره آواز .لکه :آش، آش، آش

**آشپز** :- (آش + پز) [فا ، اس ، مر ، مذ ، وا ، ج : آشپزان) آش پخوونکے ، اینګولے تیاروونکے ، پختن کوونکے ، باورچي ، بټیارے ، پخوونکے ، اخلے پخلے کوونکے. لکه : "ښهٔ آش پزر ښار نه راوله".

**آشر** :- (آ+شِ + رْ) [ع (اف : آریانا) اس ، مذ ، وا] د حضرت یعقوب علیه السلام د اتم زوي نوم. د بني اسرائیل د یوې قبیلې نیکهٔ.

**آشنا یا اشنا یا اشنو** :- (آش + نا یا آشْ + نا یا آشْ + نو) [فا ، پهه، آشناک،ص ، مذ ، ج : آشنایان، (مؤ، وا : آشنایه، مؤ ، آشنهٔ ، ج : آشنایې ، آشنې)] (۱) دوست ، یار ، واقف ، ملګرے ، پېژندګلو.

که په خوئي راسره لږ غوندې اشنا وے (خوشحال)
اشنـایـان بـه شا په شا سره تېرېږي
د یارانو حال به نور وي مونږ به نهٔ یُو (عبدالعظیم)

(۲) خبردار ، د څهٔ نه خبر ، پوهه (۳) معشوقه

پــه اشنـا پسې فقـیر شو
زړهٔ ئې روغ په تن زهیر شو (رشید)

**ــــ پرست** :- (اِص)د ملګري قدر پېژندونکے، وفادار اشنا.

**ــــ کول** :- (اص) (۱) بلدول، واقف کول، دوست جوړول (۲) په څۀ خبره پوهه کول.

**ــــ کېدل** :- (اص) (۱) بلدېدل، واقف کېدل، دوست جوړېدل، (۲) په څۀ خبره پوهېدل.

**آشناګر** :- (آشنا + ګر) [ف، (آریانا)، اس، مذ، وا] د بدخشان په علاقه کښې د یو کلي نوم دے.

**ناآشنا** :- (نا + آشنا) [فا، ص] (۱) ناواقف (بې واقفیت) نابلد (بې پېژندګلو) د چاسره ئې چې پېژندګلي نۀ وي (۲) بې خبره، نابلده، هغه څوک چې د لار ګودر نه خبر نۀ وي.

که حق د چار مې یا د اشنا لري
ورځنې ولې خــان ناآشنا لري (خوشحال)

**آشنائي** :-(آش +نا +ئي) [فا: حمص، مؤ] (۱) دوستي، یاري.

په اشنایۍ کښې مهر اخلاص بویه
ګوندې په درنګ اشنائي بله شي (خوشحال)

(۲)پېژندګلو، واقفیت

**ــــ پالل** :- (اِص) ملګرتیا پالل یا ساتل، یاري دوستي ساتل.

**ــــ ساتل** :- (اِص) (وــــ آشنائي پالل)

**ــــ پالل** :- (اِص) دوستي کول، یاري کول، پېژندګلو جوړول یا پېژندګلي پیدا کول. واقفیت پیدا کول،

**ــــ کېدل** :-(اِص) دوستي کېدل، یاري جوړېدل، پېژندګلو پیدا کېدل، واقف کېدل

**ــــ لرل** :-(اِص) دچا دوست کېدل، اشناکېدل، پېژندګلو جوړېدل، واقفیت جوړېدل

**ــــ یاري** :- (اِص) وــــ آشنائي.

اشنــائي یــاري یــو لــومــه د تګي ده
زیاته ویره له هغه کړه چې دې یار شي (علي خان)

**آشو** :- (آ+ شو) [ف : پ (قاموس) فا، آپ شو، آب : اوبۀ، شو، وینځل] په چیرړه، تیګړې یا برش او په اوبو د فرش وینځل، پاکول او صفا کول.

**آشور** :- (آ+شو+ر) [ان :پ ،اس،مذ، وا، ج : آشوریان] (۱) یو پخوانے قوم، د اسیریا وسېدونکے. لکه : "..... او پخوانو قومونو،بابل، آشور، فنیقه وغېره ویلې". (حبیبي) (۲) آشور پهلوان.

**آشور علي** :- (آشور + ع + لي) [اف، (آریانا) اس، مذ، وا] د مزار شریف په صوبه کښې د یو کلي نوم دے.

**آشول** :- (آ+ شو + ل) [پ، (روسي قاموس) اس، مذ، وا، ج :آشولونه] شور غوغا، غورېژ، چغې نعرې، فریاد، نعرې سورې هائې هوئي،

چې له دردَ سره تل شوري اشول کا (خوشحال)

**آشي** :- (آ+ شي) [اف (آریانا) اس، مذ، وا] یو بې اسرائیل عالم ؤ چې په کال ۳۵۲ میلاد کښې مړ شوے دے. دۀ تالمود نومې کتاب لیکلے دے. په دې کتاب کښې ئې د یهودیانو مذهبي تاریخ او د دوي دیني احکام راوړي دي. دغه کتاب د یهودیانو دستورالعمل یعني د ژوند دستور ګرځېدلے دے.

**آشیانه** :-(آش + یا + نَ) [فا، پهه، آشیانک، اس،مؤ،وا، ج: آشیانې] (۱) جاله، ځاله،منجاله، بنځولے.

د همــا یـــو اشیانــه ده
که دے کور د محبوبا دا (علي خان)

(۲) اص : کور، د استوګنې ځاے.

وئې وې دا زما سر، اشیانه ستا (حمید)

**آتبي** :- (آ+ خْ یا آش) [اف :پ (قاموس) اس، مذ، وا] اتالتیا، اتاله یا آتالي، ایسارتیا، ماتلتیا.

**آتبل** :- (آ+خْل) [پ (راورټي) مص مت] (وــــ آخنبل)

**اتبلے** :- (آ+خ +لے) [پ (راورټي) اس صف] (وــــ اخنبلے)

**آتبنه** :- (آ+خ + نَ) [پ (راورټي) حمص] (و ـــ آخنبنه)

**آتبونکے** :- (آ+خو+ ن + کے یا آخ + شو + ن + کے) [پ (راورټي) اس، فاع] (وــــ آخنبونکے)

**آصف** :- (آ+ص + ف یا آ + صِ + ف) [ع، اس، مذ، وا] (۱) د حضرت سلیمان علیه السلام د وزیر نوم.

نۀ سلیمان وۀ نۀ ئې تخت وۀ
نــۀ آصـف نــۀ بـــرخیا (خوشحال)

(۲) د شاهجهان بادشاه په دور کښې یو ایرانے شاعر د دیوان خاوند ؤ.

**آصف جاه** :- (آصف + جا + ه) دا د دکن د ریاست اول نظام تېر شوے دے. اصلي نوم ئې خواجه عابد خان ؤ. د شاهجهان په دور کښې د سمرقند نه هندوستان ته راغلے او د اورنګ زېب په وخت کښې وزیر شو. او د فرخ سیر په بادشاهۍ کښې د دکن د حکومت واک ئې په لاس کښې واخست.

**آصف خان** :- (آصف + خا+ ن) [(آریانا)، اس، مذ، وا] (۱) آصف خان په نوم د مغلو د دربار دوه مشهور وزیران تېر شوي دي. یو آصف خان د نورجهان ملکې دور ؤ. چې روستو د شاهجهان وزیر پاتې شوے دے او په کال ۱۰۵۱ هجري کښې مړ شو او په لاهور کښې ښخ کړے شو.

دا بنــا د اصـف لـــه لاســـه شــوې
اوس په حکم د خورم پکښې دا کار شي (خوشحال)

(۲) د مغلو د دربار څو لویو سرو لقب

**آصف الدوله** :- (آصف + اُد+ دؤ + لَ) [(آریانا) اس، مذ، وا) د هندوستان په اودهـ د نوابانو کښې د شجاع الدوله زوے وو. په کال ۱۱۸۸ هجري کښې په فېض آباد کښې مړ شو. دے سخي په علم مئین او لوړ شاعر وو. د اُردو او فارسي کلام ئې د دیوان په شکل موجود دے.

**آصف نیکۀ** :- (آصف + ني + کۀ) [(آریانا) اس، مذ، وا] د قندهار د ارغستان په علاقه کښې یو مشهور زیارت دے.

**آصف هروي** :- (آصف، هَرْ + وي) [(آریانا) اس، مذ، وا] مولانا آصفي د هرات د پوهانو او عالمانو څخه ؤ. د پلار نوم ئې خواجه نعمت الله دے. لوے شاعر ؤ. دے په ۹۲۰ یا ۹۲۲ هجري کال کښې مړ شوے دے. قبر ئې په هرات کښې دے.

**آصفیه** :- (آ + صف + یا صفْ + يَ) [ع، اس، نسبتي] د آصف سره تعلق لرونکے، د دکن د ریاست د نظام خاندان.

**آغا** :- (آ+غا (تُر (آریانا) اس، مذ، وا ج: آغاګان] (۱) په اصل کښې یوه تُرکي کلمه ده چې معنٰی ئې بي بي یا خاتون ده. د ترکستان د بادشاهانو د دستور وو چې په هره خبره کښې ئې د کور د مېرمنو سره مشوره کوله (۲) نن ورځې د مشر، آقا، مالک یا آګا یا او قا په ډول استعمالېږي. د پښتنو په ښار کښې د عزت او درناوي دپاره دا ټکے وئیلے شي.

**آغا جان** :- (آغا+جان) [(آریانا)، اس ص، مذ، وا] (۱) د قندهار په صوبه کښې یو کلے دے (۲) په پښتنو کښې هلکان جینکۍ خپل مشر ته

د مینې نه آغاجان وائي.

**آغاجي** :- (آغا + جي) [پ تر ، اس ، ص ، مذ ، وا] عام طور سره مشر یا آقا ته آغاجي وئیلے کېږي.

**آغاخان** :- (آغا + خا + ن) [(آریانا) اس ، مذ ، وا] (۱) د اسماعیلي فرقې مذهبي مشر یا امام (۲) لومړے آغا خان چې نوم ئې حسن علي شاه ؤ. په فارس کښې په کال ۱۸۰۰ء کښې پیدا شوے ؤ. انګرېزانو دهٔ ته هزهائي نس خطاب ورکړے ؤ. (۳) موجوده آغاخان پرنس کریم آغا خان دے. چې په فرانس کښې استوګن دے.

**آغاز** :- (آ + غا + ز) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا] شروع ، اول سر ، سر

کــه د مــزري سره یاري اغاز کا
کــوم خـوئي به واخلي د مزري سویه (خوشحال)

**ـــ کول** :- (اص) شروع کول ، په څهٔ کار لاس پورې کول ، په څهٔ کار اړمبدل.

**آغزن یا اَغزن** :- (آغ + ز + ن یا اَ + غ + زَ + نْ) [اف ، پ (سیند) اس ، ص ، وا ، (مؤ ، وا : آغزنه ، ج : آغزنې] اغزن ، ازغو نه ډک ، د اغزو نه پُور "دا ونه آغزنه ده"

**ـــ کېدل** :- (اص) (و ـــ آغزنېدل)

**ـــ مزے** :- (ـــ مَ + زے) [اف ، پ (سیند) اس ، مو ، مذ ، وا ، ج : آغزن مزي] (اص) اغزن تار ، هغه د اوسپنې تار چې ازغي په کښې وي. کله کله چې فوځ یو ځاے کښې دېره لګوي نو د هغه ځایه چارچاپېره آغزن مزے یا خاردار تار ولګوي. کانټې دار تار ،

**آغزنېدل** :- (آغ + ز + نې + د + ل) [آ ف : پ (سیند) مص لا] په څهٔ څیز کښې ازغے راختل یا ازغے پیدا کېدل.

**آغزے** :- (آغ + زَ ، ے) [اف : پ (سیند) اس ، مذ ، وا ، ج : آغزي] ازغے ، خار ، لکه : "په پښې کښې مې اغزے ننوځ شو".

**آغږل** :- (آغ + ګ + ل + یا ږْ + ل) [اف ، پ (سیند) مص ، مت] (و ـــ اخښل) مات : ؤآغږهٔ ، حا : آغږي ، ا : وابه آغږي ، امر : وُآغږه.

**آغږنه** :- (آغ + ګ + نَ یا اَغْ + ږْ + نَ) [پ ، حمص] (و ـــ آخښنه)

**آغُستل یا آغوستل یا اَغوستل** :- (آ + غُس + تل یا آ + غو + س + تل یا آ + غو + س + تل) اپ (راوړتي) مص مت) د جامو اچول ، کالي اغوستل ، کالي یا خت په وجود اچول ، لکه : "نن بنې پاکې جامې آغستل په کار دي". ما : واغستهٔ ، حا : آغوندي ، ا : وابه غوندي ، امر : واغونده.

**آغُستلے یا آغوستلے یا اَغوستلے** :- (آ + غُس + ت + لے یا آ + غوس + ت + لے یا اغوس + ت + لے) [ پ (راوړتي) مف] آغوستے ، څهٔ جامه لته اچولے شوے.

**آغُستن** :- (آ + غُس + تَ + نْ) [ت (راوړتي) مص مت] (و ـــ آغُستل)

سفله د هیڅرې د مال ځښتن نهٔ شي
د بنــو جامو دې په اغوستن نــهٔ شي (خوشحال)

**آغُستنه یا آغوستنه یا اَغوستنه** :- (آ + غُس + ت + نَ یا آ + غوس + ت + نَ یا اَغوس + ت + نَ) [ پ (راوړتي) حمص] د اغستلو کار ، کالي اغوستنه ، جامې په ځان اچونه.

**آغُستول یا آغوستول** :- (آ + غُس + ت + ؤ + ل یا اَغُوسْ + تَ + ؤ + ل) [اپ (راوړتي) مص مت] وراغوستل ، بل چاته جامې اچول یا اغوستل ، مـا : واغـوستاوهٔ ، حا : آغندوي ، ا : وابه غندوي ، امر : واغندوه.

**آغُستولے یا آغوستولے** :- (آ + غُسْ + تَ + ؤ + لے یا اَغُسْ + تَ + ؤ + لے) [پ (راوړتي) مف مد ، وا ، ج : آغستولي] وراغستولے ، جا ته جامه لته وراچولے.

**اغُستونکے یا آغوستونکے یا اَغوستونکے** :- (آ + غُس + تُون + کے یا آ + غُوس + تُون + کے یا اَغوس + تُون + کے) [پ (راوړتي) اس ، فا ع مذ وا ، ج : آغستونکي یا آغوستونکي یا آغوستونکي] (۱) جامې اچوونکے ، جامې کالي اغوستونکے ، (۲) برستن یا څادر په سر را اړوونکے ، مخ او ځان په څادر یا برستن پټوونکے.

**آغُستونے یا آغوستونے یا اَغوستونے** :- (آ + غُس ، تُو + نے یا آ + غوس + تُو + نَے یا اَغوس + تُو + نے) [پ (راوړتي) اس ، فاع] (و ـــ آغستونکے)

**آغُستوُنکے یا اَغوستوُونکے** :- (آ + غُس + ت + وو + نْ + کے یا اَغُسْ + تَ + وو + نْ + کَے) [پ (راوړتي) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : آغستوونکي] وراغستونکے ، چاته جامه کالي اچوونکے ، بل چاته لتې په بدن وراغستونکے.

**آغُستوُنے یا اَغوستوونے** :- (آغُسْ + تَ + وو + نے یا اَغُسْ + ت + وو + نے) [پ (راوړتي) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : : آغستوُوني] (و ـــ آغستوونکې.

**آغُستے یا آغوستے یا اَغوستے** :- (آ + غُس + تے یا آغوس + تے یا اَغوس + تے) [پ ، حمص] (و ـــ آغستلے)

ګانده به په کور کښې دے ابهن کفن اغوستے
نن دې سـر تـر پـایه که جامې زرافشاني دي (خوشحال)

**آغل** :- (آ غ + ل) [ف ، پ (سیند) مص مت] (و ـــ آخښل)

**آغله** :- (آ غ + لَ) [پ (ق) اس ، ص] (۱) کنبلے ، بنکلے ، د کتو وړ پېغله (۲) مذ ، ج : بنکلي.

**آغلے** :- (آ + غ + لَے) [پ اس ص ، مذ وا ، ج : آغلي ، مؤ ، وا ، آغلې یا آغلي] (و ـــ آغله)

**آغود** :- (آ + غو + د) [ف ، پ (سیند) اس ، ص] غنم چې لمدهٔ کړے شي ، تبغې راوباسي او بیا وچ کړے شي. د سوهن حلوه دپاره سوني د جوړولو دپاره دغه طریقه استعمالېږي.

**آغودول** :- (آ + غو + دَ + ؤ + ل) [پ (روسي قاموس) مص مت] غنم لمدول ، چې تبغې وباسي بیا وچول ، ما : آغودکهٔ ، حا : آغودوي ا : آغود به کي ، امر : آغود کا

**آغودېدل** :- (آ + غو + دې + د + ل) [پ (روسي قاموس) مص لا] عام نهٔ استعمالېږي ، ما : آغود شهٔ ، حا : آغودېږي ، ا : آغود به شي

**آغوندل یا اَغوندل** :- (آ + غو + ن + د + ل یا اَغون + د + ل) [اف ، پ (سیند) مص مت] (و ـــ آغستل)

**آغېزه یا اَغېزه** :- (آ + غې + زَ یا اَ + غې + زَ) [اف ، پ (سیند) اس ، مؤ ، وا] اثر ، تاثیر ، مننه

**آغېزه یا اَغېزه کوونکے** :- (آغېزه یا غېزه + کَ + وو + ن + کَے) [پ ، اس ، فاع] اثر کوونکے ، زړهٔ ته پرېوتونکے ، اثرناک ، تاثیرناک

**ـــ کول** :- (اص) اثر کول ، تاثیر کول ، خبره په زړهٔ لګېدل.

**آغېزه ناک یا اَغېزه ناک** :- (آغېزه + نا + هک یا آغېزه + نا + ک) [ف ، پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج ، (مؤ ، وا : آغېزه ناکه یا اَغېزه ناکه ، ج : آغېزه ناکې یا اَغېزه ناکې] (و ـــ اغېزه کوونکے)

**آغېړ** :- (آ + غې + ړ) [اف ، پ (سیند) اس ، مذ] (۱) د خېټې خرابے ، بدهضمي (۲) ذیل ، ضد ، خنډ

**آغېړل** :- (آ + غې + ړ + ل) [پ (بلیو) مص لا] خېټه خرابېدل ، بدهضمي کېدل

**آغېړل يا اَغېړل** :- (آ+غي +ګ +ل يا اَ +غې+ ړ + ل) [پ ، مص ، مت] (و-آخښل)

**آغېړلئے يا اَغېړلئے** :- (آ+غې + ګ + لا + ئے يا آ + غې + ړ + لئے) [اف ، پ (سيند) حمص] (و ـــ آخښلے)

**آغېړۀ يا اَغېړۀ** :-(آ+غي+ګ يااَ+غې+ ړ) [اف،پ(سيند)حمص] (و-آخښنه)

**آغي** :- (آ+ غي) [پ (ق) ، ص] خوشحالي ، ربا

**آفت** :- (آ+فَ + تْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : آفتونه] (۱) آپت ، بلا ، زحمت ، وبا ، بيماري ، تکليف ، درد ، مصيبت (۲) سپېرۀ کار ، بده علامه (۳) فتنه ، قهر ، غضب (۴) هوښيار ، زيرک ، لکه : '' هغه خو آفت دے '' (۵) بې شرم ، شېطان، چالاک ، ژبه ور ، لکه : '' ډېر آفت هلک دے ''

**ـــ رسېدل** :- (اص) زهيرېدل ، تکليف رسېدل ، دردېدل ، زورېدل، په څۀ بيمارۍ يا مقدمه کښې ګېرېدل ، بربادېدل ، کړېدل لکه : '' دا آفت رسېدل مې په سترګو ليدل ''.

**ـــ نازلېدل** :- (اص)د خدا ے پاک له طرفه په څۀ مصيبت کښې اخته کېدل ، د طوفان ، سېلاب او يا د باد او باران په وجه نقصان رسېدل ، وبا.

**ـــ وهل** :- (اص) (و ـــ په آفت آخته کېدل)

**ـــ وهلے** :- (اص) (ـــ آفت + و + هـ + لے) [پ (راورټي) اس ، ص، مذ ، وا ، ج : آفت وهلي] هغه څوک چې تکليف ، کړاؤ ، درد يا نقصان ورته رسيدلے وي.غم زپلے ،

**آفتاب** :- (آفْ + تابْ) [فا ،پهه،آفتاب، ګبلکي : آفتاب يا اَفتو ، اس ، مذ ، وا] د مېرسترګه ،د نمر سترګه ، نمر ، لمر مير ، نور ، نمبر.

**آفتابه** :-(آفْ + تا + بَ) [فا ، پ (راورټي) روسي قاموس) اس ، مو، وا ، ج : آفتابې] لويه کوزه ، د اوبو لوښے چې لاسته ، کشکوړے او سر لري . سُر ولينه ، لکه : ''آفتابه کښې اوبۀ واچوه ''

**آفتابي** :- (آف + تا + بي) [پ (راورټي + روسي قاموس) ص] د لمر ، د نمر سره تعلق لرونکے.

**آفرين يا اَفرين** :- (آ+ ف + ري + ن يا اَ + فَ + ري + ن) [فا ،د شاباسي ټکے] (وـــ آپرين)

**ـــ کول** :- (اص) عام نۀ استعمالېږي.

**ـــ ويل** :- (اص)شاباسے ويل ، چاته شاباسے ورکول ، په ملا ټپول ،د چا په کار خوشحالېدل ، واه واه وئيل .

**آفريدي يا اَفريدي** :- (آف + ري + دي يا اَف + ري + دي) [پ ، اس ، مذ ،وا ، ج : آفريديان ، (مؤ ، وا ، ج : آفريدۍ، آفريدے] اپريدي اوپريدي ، د پښتنو يوه قبيله چې د خېبر او تيراه په علاقو کښې اباده ده.

**آفريدۍ يا اَفريدۍ** :- (آف + ري + د+ ی يا اَفْ + ري + د+ ی) [پ ،اس مؤ ، وا + ج] د اپريدو د قبيلې ښځه.

**آفريدے يا اَفريدے** :- (آف + ري + د ے ، يا اَف + ري + د ے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : آفريدي] د اپريدو د قبيلې سړے ، د افريدو د قبيلې يو غړے.

**آفندي** :- (آ+ فَنْ + دي يا آ + فِنْ + د + ي) [ت ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: آفنديان] (۱) د عزت او درناوي لقب ، شهزاده ، (۲) د يو ترکي قبيلې نوم دے. په پاکستان کښې هم د افندي خاندان کسان آباد دي.

**آقا** :- (آ + قا) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : آقايان] آغا ، آکا ، آګا ، اوقا ، مالک ، لکه : ''آقا مې راغلے دے ''

**آکا يا اَکا** :-(آ+کا ، يا ، اَ+کا) [پ، اس، مذ، وا، ج: آکايان، آکاګان] (و-آقا)

**آکاخېل يا اَکاخېل** :- (آکا يا اکا + خې + ل) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج] (۱) د افريدو د يوخېل نوم،لکه '' اکاخېل ملکان راغلي دي''.

**آکاخېله يا اَکاخېله** :- (آکا يا اکا + خې + لَ) [پ ، اس ، مؤ ، وا، ج: آکاخېلې] د آکاخېلو د قبيلې يوه ښځه.لکه '' دا آکاخېله جينۍ ده ''

**آکاړۍ يا اَکاړۍ** :- (آ + کا ، يا اکا + ړۍ) [اف ، پ (سيند) اس ، ص، مؤ ، وا] سختي ، اړي ، اړي ماړي ، لکه: '' فلانے سړے راسره اکاړي کوي ''.

**ـــ کول** :- (اف) (اص) سختي کول،اړي ماړي کول،لکه : ''آکاړي کول بده خبره ده ''

**آکړ** :- (آ+ک+ړ) [ف : پ (سيند) اس ، خطاب] د بابا، آکا ، آقا ، آغا او ماما دپاره وارۀ ماشومان دا ټکے وائي.لکه ''آکړ مې راغلو '' .

**آکړي پاکړي** :- (آک + ړي + پاک + ړي) [پ (وز) اس ص ، مذ] د جوارو ګنجے وېژے يا وړے ، ښجے ، ګنجے.

**آکسيجن يا اَکسيجن** :- (آک يا اَک سي+ جَ + نْ) [انګ ، اس ، مذ،وا] يو بې رنګه ، بې خونده ، بې شکله او بې بويه ګېس چې د اوبو نه ۳۱ . ۱ برخې دروند دے. دا ګېس د بنيادمو ، ځاروو اود ونو بوټو د ژوندون دپاره ډېر ضروري دے.

**آګا يا اَګا** :- (آ+ګا يا ، اَ + ګا) [پ(ب ، خ) اس ص ، مذ ،وا] (۱) و ـــ آغا لکه ''آګامې را روان دے '' (۲) د نيکۀ دپاره استعمالېږي .

**آګاه** :- (آ+ګا+ه) [فا ،ص،مذ،وا] خبر ، واقف ، خبردار ، پوهه معلوم

**ـــ کول** :- (اص) خبرول ، خبر ورکول ، معلومول ، پوهه کول.لکه '' زما کار خو ستا آګاه کول وو '' .

**ـــ کېدل** :- (اص) خبرېدل ، خبر ورکېدل ، معلومېدل ، لکه ''آګاه کېدل ئې ضروري دي''.

**آګائي يا اَګائي** :- (آ + ګا+ئي ، يا اَګائي) ش[فا :آګاهي ، اس مؤ] (۱) واقفيت ، خبرداري ، هوښياري (۲) د مرض علامې.

**آګبوټ** :- (آک + بُو + ټ) [پ (روسي قاموس) اس ، مذ ، وا] انګبوټ ، انګوټ ، د اوبو ورکوټے جهاز.

**آګره** :- (آک + رَ) [اس ، مؤ ، وا] (۱) د هندوستان يو مشهور ښار (۲)د پښتنو په علاقه کښې د ځينې کلو نومونه.

**آل** :- (آ + ل) [ع ، ص] (۱) اولاد ، خېل خانه ، (۲) فا : سُور رنګ ، سوربخن. (۳) ايوې ، ال ، (هل)

**آل اولاد** :- (آل + اَو + لا + د) [فا ، پ (راورټي) س ، مذ ، مو ، ج] خېل خانه ، بال بچ ، کورنۍ ،

**آل په آل** :- (آلْ + پَ + آلْ) [پ تر ، اس ص] اولاد په اولاد ، يو پسې بل نسل ، نسل په نسل ، پېړۍ په پېړۍ

**آلت** :- (آ + ل + ت) [ع ، پ تر ، اس ، مذ ، وا] اوزار ، وسله ، د نارينه د نارينتوب نخښنه ، سوخې.

**آل دوآل يا آل دُوآل** :- (آل + دو + آل + دُو + اَل) [پ اص] دوه آله ، زمکه دوه ځله اړول ، کله چې زميندار يو پټے يو ځل په اوړدو او بل ځل په لنډو (په اوږدۀ سارۀ) واړه وي چې په کښې پاړه پاتې نۀ شي نو ورته آل دُوآل وائي.

**آلِ رسُول** :- (آل + ر+ سُو + ل) [ع ، فاتر ، اس ، ص] د رسول کريم صلی الله عليه وسلم اولاد ، سادات.

**آل عيال يا آل اَيال** :- (آ ل + ع + يا + ل يا آل + ا +يا + ل) [ع ، اس ص مذ ، مؤ، ج] (و ـــ آل اولاد) لکه : ''--- لکه په دا سفر د آل له عيالَ يک تها شي

" (اخون قاسم)

**آلمان** :- (آل + مان) [ع ، پ (روسي قاموس) اس ، مذ ، وا] جرمني ، د جرمن ملک.

**آلمانوي** :- (آل + ما +نَ+وي) [پ (روسي قاموس) اس ، ص] د جرمن ، د جرمن سره تعلق لرونکے ، د جرمن د ملک جرمنے.

**آلو یا اَلو** :- (آ + لُو یا اَ + لُو) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : آلوګان ، آلوګون] پټاټه ، د یو ترکارۍ نوم.

**آلو په شفتالو پیوندول** :- (اص) بې ځایه کار کول ، داسې کار ته لاس اچول چې د کېدو نه وي.

**آلو بالو** :- (آلُو + ب + لُو) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج] د یوې مېوې نوم.

**آلو بخاره یا الي بُخاره** :- (آ لو+ بُ + خا+ ر+ ، یا آلي + بُ + خا + رَ) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : آلوبخارې] یوه تروه شان مېوه.

**آلو تل یا اَلوتل**:- (آلْ + وَ + تْ ، لْ ، یا اَلْ + وَ + تْ + ل) [فا ، پ (سیند) مص لا] (۱) په هوا کښې تلل،ورتل (۲) ډېره تېزه منډه وهل ، تېز دؤ (۳) دځۀ څیز دلوګي یا بړاس په شکل کښې ختمېدل . ما : والوت ، حا : آلوځي ، ا : وابه لوځي ، امر: والوځه

**آلوتلے یا اَلوتلے**:- (آلْ + یا اَلْ + وَ + ت + لَے) [پ (راورټي) ] هغه څوک یا څیز چې الوتے وي . لکه : " مارغۀ آلوتلے دے "

**آلوتنه یا اَلوتنه** :- (آلْ یا اَلْ + وَ + تْ + نَ) [پ (راورټي) حمص] د الوتلو کار ، په هوا د تللو کار.

**آلوتونکے یا اَلوتونکے** :- (آلْ یا اَلْ + وَ + تُون+کَے) [پ (راورټي) اس، فا ع ، مذ ، وا ، ج : آلوتونکي یا اَلوتونکي] هغه څوک چې الوځي . لکه : " جیاز (جهاز) آلوتونکے دے".

**آلوچه یا اَلوچه** :- (آلُویا اَلُو+ چَ) [اس ، مؤ ، وا ، ج : آلوچې] د منډتې او د آلو بخارې په شان یوه مېوه چې په پېښور کښې ډېره کېږي.

**آلوده یا اَلوده** :- (آ یا اَ + لو + دَ) [فا ، پ (راورټي) ص] لړلے ، ککړ ، پلیت ، داغ لګېدلے ، داغي ، ابطه ، ګناهګار.

**ـــ کول** :- (اص) ککړول ، پلیتول ، لبت پېت ، لړ ،داغ لګول ، په ګناه اخته کول

**ـــ کېدل** :-(اص) لړلے کېدل ، ککړېدل ، پلیتېدل ، ګناهګار کېدل، داغ لګېدل

**آلوزول یا الوځول** :- (آلْ یا اَلْ + وَ + زَ + وْ + لْ) [اف ، پ (سیند) مص مت] (۱) په هوا کښې ورزول ، په هوا کښې اچتول (۲) اص : غنم او بُوس د یو بل نه بېلول او پاکولو دپاره په هوا کښې اچتول ، څپ وهل . ما : والوزوه ، حا : آلوځوي ، ا : وابه لوځوي ، امر : والوځوه

**آلوزولے یا الوځولے** :- (آلْ یا اَلْ + وَ + زَ + وْ + لَے) [پ (راورټي) مف] الوځولے شوے ، په هوا کښې اوچت کړے شوے.

**آلوځوُونکے یا اَلوځوُونکے** :- (آلْ یا اَلْ + وَ + زَ + وُو + نْ + کَے) [پ (راورټي) اس، فا ع، مذ ، وا ج : آلوځوُونکي یا اَلوځوُونکي] په هوا کښې اوچتوونکے ، په باد کښې ورزوونکے.

**آلوزوُنے یا اَلوزوُولے** :- (آلْ یا اَلْ + وَ + زَ + ووُ + لَے)[پ (راورټي) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : آلوځوني یا اَلوځوُني] (و ـــ آلوځوُونکے)

**آله** :- (آ + لَ) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : آلې] وسله ، اوزار ، برګ

**آلې زالې** :- (آلې + زا + لې) [پ ، وز + ب ، خ ، اص] (۱) کوښښ ، همت ، منډه تړه ، وس . متل : بنده کړي آلې زالې ، الله تعالی کړي

خپلې چارې (۲) بېړه ، تلوار ، وارخطائي ، هېبت

**آم یا اَم** :- (آمْ یا اَ مْ) [ه ،اس ، مذ ، وا ، ج : آمونه ، اَمبونه] ام ، انب امب هم یوه مشهوره مېوه چې د ګرمۍ په موسم کښې پېدا کېږي او ډېر قسمونه لري.

**آماده یا اَماده** :- (آ یا اَ + ما + دَ) [فا ، ص] تیار ، راضي.

**ـــ کول** :- (اص) تیارول ، راضي کول ، لکه : " د هغۀ آماده کول زما ذمه ده ".

**ـــ کېدل** :- (اص) غاړه کېښېښول ، تیارېدل،راضي کېدل ، لکه :"ستا آماده کېدل بنه خبره ده ".

**آمبره** :- (آمْ + بْ + رَ) [پ (وز) ص] اُمره ، د امره ، هومره ، آمره ، لکه:" آمبره ویلوړ (ولاړ) اوسه ".

**آمد** :- (آ + مَ + دْ) [فا ، حمص ، مذ ، وا] (۱) ګټه ، امدن ، امدني (۲) د شاعرۍ یوه اصطلاح ، خبره یا خیالات چې په خپله زړۀ کښې راپېدا شي.

**رفت ـــ** :- (رَفْ + تْ + آمَدْ) [فا ، آمدو رفت ، اس ف] تګ راتګ ،تلل ، تلۀ راتلۀ

**آمدن یا اَمدن** :- (آمَ + دَ + نْ ، یا آمْ + دَ + نْ یا آمْ +دْ + نْ یا آ++وُنْ + دَنْ) [فا ،مص،مذ ،وا] طلب،ګټه،آمدني،زیاته وصولي، نفع ، تنخواه

**آمدني یا اَمدني** :- (آ+ مَ + دَ + ني یا آمْ + دَ + ني یا آمْ + د+ ني یا آ+ وُنْ + دْ + ني) [فا ، حمص] (و ـــ آمدن)

**آمر** :- (آ + مِ + رْ) [ع ، اس ،فا ع ، مذ ، وا ، ج : آمران ، آمرون] حاکم ، حکم ورکوؤنکے ، حکم کوونکے ،

**آملوک یا اَملوک** :- (آمْ + یا اَمْ + لُو + ک) [پ ، اس ، مذ، وا، ج] (۱)یوه مشهوره توره ځنګلي مېوه (۲) نن ورځې جاپاني آملوک هم راګډ دي

**آمنا کول** :- (آ+مَ + نا + کَ + وْ + لْ) [ع ،آمنا ،پ : کول ، مص تر ، مت] قبلول ، منل ، اتفاق کول ، آمنه کول.

**آمنه و صدقنا** :- (آ+ مَ + نَ + وَ + صَ+ دَقْ + نا) [ع ، اص] لغ : مونږ ایمان راوړو او مونږ تصدیق وکړو . اص : یوه خبره چې درسته وګڼلے شي . او قبوله کړے شي . نو هغه وخت وئیلے کېږي .

**آمنه** :- (آ + مِ + ن) [ع ، اس ، مؤ ، وا] (۱) د حضرت رسول کریم صلی الله علیه وسلم د مور بي بي نوم . (۲) د افغانستان یوه شاعره وه . چې تخلص ئې فدوي وو . (۳) د غزني په کتواز علاقه کښې د کلو نومونه

**آمو** :- (آ مُوْ) [فا ،مخ د آمُونْ ، پهه : هامو ، اس مذ ، وا] د افغانستان یـــو سیند چې عرب ورته جیحون او انګرېزان ورته آکس وائي لکه : " ... د آمو په جنوبي ورشوګانو او د ګوزګان او خراسان په حدود کښې د اسلام تر وختو پورې لا هم یهود او عرب یعني سامي ځان موجود وو" (حبیبي)

**آموخت یا اَموخت** :- (آ+ مو + خْ + ت یا اَ + مو + خ + ت) [فا ، ص ، مذ ، وا] عادت ، بلد ، واقف.

**آموخته یا اَموخته** :- (آ یا اَ + مو +خ + تَ) [فا ،اس ، ص] (۱) عادت شوے . بلد ، واقف.(۲) تېر شوے سبق.

**ـــ کول** :- (اص) بلدول ، عادت کول، لکه : ... فصل اول په باب د باز اموخته کول "

**ـــ کېدل** :- (اص) عادتېدل ، بلدېدل . لکه : " د تنځري آموخته کېدل آسان دي

**آموخته خور** :- (آموخته + خو +ر) [فا ، اس ، فا ع ، مذ ،وا] په خوراک عادت ، په خوړلو عادت شوے.متل : ''آموخته خور بنۀ دے که بلا خور''

**آموني يا اَموني** :- (آ يا اَ + مو + ني) [پ (ب ، خ ، بنو) اس ،ص ، مؤ ، وا ، ج : آمونۍ] (۱) اماني د څۀ كار كولو دپاره مزدور ته د ورځې پيسې وركول ، په آمونۍ كښې دا ضروري نۀ ده چې مزدور به څۀ د مقرر حد هومره كار كول (۲) سو ، د شولو امانت كښېښول.

**آم و دود** :- (آمْ+او+دو+ د) [اف،پ (قاموس) اص] د يو ټولي خاموشي

**آمي يا اَمي** :- (آ + مي يا اَ + مي) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا ، ج: آميان] عامي ، بې تعليمه ، بې علمه ، ان پړ ، هغه څوک چې ليک لوست نۀ شي كولے.لكه : '' امي سړے په دې خبره نۀ پوهېږي ''. متل : '' امي سړے چې شېخ شي نو د كُفر وبخ شي ''.

**آمين** :- (آ + مي +ن) [ع ، د دُعا ټكے] دغه شان دې وي.دغسې دې وي.د دُعا د قبلېدو خواهش.

**ـــــ امين** :- (ـــــ آ + مي + ن) (اص) د زيات خلوص او همدردۍ ښكاره كولو دپاره دوه واره وائي.

**ـــــ كول** :- (اص) (۱) په دعا پسې آمين وئيل.(۲) قبلول ، څۀ خبره منل ، څۀ خبرې تهٔ غاړه كښېښودل.

**آمين دان** :- (آمين + دا + ن) [پ (بنو) ص] په څۀ څيز رضا كېدل ، په څۀ خبره صبر بدل ، لكه : ''په دا دے آمين دا وشي كه تېره دېر كي ''

**آن** :- (آ+ ن) [ع ، اس] (۱) وخت ، ساعت ، لږ وخت ، د سترګو څمبلو برابر وخت ، د سترګو رپ (۲) توان ، طاقت ، قوت ، زور

**ـــــ په آن** :- (آنْ + پَ + آن) [اف ، پ (قاموس) اص] دم په دم ، ساعت په ساعت، لحظه په لحظه ، وخت په وخت ، ګړۍ په ګړۍ.

**ـــــ تمامول** :- (اص) خپل قوت او طاقت لګول ، پوره زور كول ، تنۍ شلول ، دارو سيكهٔ خلاصول ، پوره پوره وس كول.

**ـــــ تمامېدل** :- (اص) مرګ ته نژدې كېدل ، د عمر آخري پوړو ته رسېدل ، زيات بوډاتوب ، وخت خلاصېدل.

**ـــــ منل** :- (اص) تابعدار كېدل ، غاړه كښېښول ، په خپل حال صبر بدل لكه : ''....موسیٰ جان خو مې مړ كې ، اُوس خو نو بل څوک نه سودر پاته ، په ! اوس نو خپل آن ومنه '' (ملي هنداره)

**آنر** :- (آ + نَ + رْ) [انګ Honour،اس ص ، مذ ، وا] (۱) انګ : عزت ، (۲) ګن : هغه غوئے چې خسي نۀ وي.ايندۀ

**آنكي [انكي]**:- (آن + ړ + كي) [پ (بنو) اس ، مذ ، مؤ ، وا ، ج] د بټېر يا مرز يو قسم ، وركوټي بټېره يا مرزه ، دا قسم بټېر جنګ نۀ كوي هسې اوازونه كوي

**آنند يا اَنند** :- (آ يا اَ + نَنْ + د) [ه ، اس ، مذ ، وا، ج : آنندونه يا انندونه] خوشحالي ، خوشي ، آرام ، عېش ، مزه

**ـــــ كول** :- (اص) خوشي كول ، آرام او عېش كول ، مزې كول ، خوشحالي كَول

**آنه** :- (آ + نَ) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : آنې) انه ، انيز، آنې وال ، د پاكستان د روپۍ شپاړسمه حصه ، دا سكه اوس نۀ استعمالېږي.

**آنې بانې** :- (آ + نې + با + نې) [پ ، اس،مؤ ، ج ، وا : آنه بانه] عذرونه ، بهانې ، د ځان خلاصولو دپاره خبرې جوړول.

**آواره يا اَواره** :- (آ يا اَ +وا + رَ) [فا،ص) (۱) بې فائدې ، بې بوده ، عبث ، بې مطلبه ،ضائع (۲) بې لارې (۳) بد كاره ،بدخويه ، بدچلنه ، خوشكے.
لكه : ''دا هلک آواره شوے دے '' . (۴)پرېښونه ، لاس اېستنه (۵) جاروتنه ، ملګرتيا پرېښول ، مخ ګرځول ، (۶) برابرے ، سمے ، سمون (۷) بې سره ، بې مهاره ، په خپل مخ روانه ، (۸) خور وور ، پرېشان.

**ـــــ كول** :- (اص) (۱) پرېښول ، معاف كول ، هېرول (۲) بدو كارونو ته د چا پام كَول

**ـــــ كېدل** :- (اص) بدكاره كېدل ، خرابېدل ، بدعمله كېدل ، خوشے ټارے كېدل

**ـــــ كړونے** :- (ـــــ ک + ړو + نے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : آواره كړوني] معاف كوونكے ، معافي وركوونكے ،

**ـــــ ګرد** :- (ـــــ ګ + ړ + د) [فا ، آواره ګرد ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج] (۱) بد عمله ، بد كاره ، بد چلنه ، لكه : ''د آواره ګرد سړي ملګرتيا بدنامي ده '' (۲) هسې ګرځېدونكے ، بې كاره ، خوشكے، ليه. (۳) لوېر (لوفر) لوچه لُفنګ.

**ـــــ ګردي** :- (ـــــ ګرْ + دي) [فا ، اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : آواره ګردئ] (۱) بد چلني ، بدعملي (۲)بې كاري،هسې ګرځېدنه ، لكه ''فلانے پوليس په آواره ګردۍ كښې چالان كړو '' (۳) لوفري، لُوچه توب

**آواز يا اَواز يا آووز** :- (آ يا اَ + وا + ز) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج :آوازونه ، اَوازونه،آووزُونه،آووزينه] (۱) ژغ،غږ،آووز، مشهوري (۲) شور ، زوږ (۳) تلفظ ، مخرج ، د وېنا طرز ، لكه : ''....د دنيا د ټولو ژبو ژغونه او آوازونه يعني توري ترسلو پورې رسېږي '' (حبيبي)

**ـــــ اېستل** :- لغ : غږ ياژغ ويستل ، نعره يا چغه كول ، (اص) : د رباب سرينديې ، باجې يا بل څۀ ساز نه اواز ويستل يعني غږول.

**خپل ـــــ** :-لغ : خپل غږ يا ژغ ، خپله خولۀ ، اص : خپل ځان په خپله ښكاره كول.خپل صفت په خپله كول.

**د مرګ ـــــ** :- (اص) د چا د مړ كېدو خبر ، د چا د مرګ انګازه.

**آوازه يا آووزه** :- (آ+وا+ز ، يا آ + وو + زَ) [فا ، اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج: آوازې يا آووزې] (۱) درز ، شهرت ، آووزه. (۲) افواه ، غلط خبر ، د ځانه څۀ خبره خورول ، ګنګوسه ، انګازه . لكه: ''... په دروغه ما آوازه ګډه كړې وه '' (تواريخ حافظ رحمت خان)

**ـــــ كېدل** :-(اص) ګنګوسه كېدل،خبره مشهورېدل،خبر راتلل، د څۀ خبرې خورېدَل

**بد آوازه** :- (بَ + دْ + آ + وا + زَ) [پ ، اس ص ، مؤ ، وا] (۱) بد مرغه بده ، چې ښۀ والے نۀ لري.بې كاره ، بې بوده.(۲) بې سُره ، د بدرنګ آواز خاوند.

**آوان يا اَوان**:- (آ يا اَ + وا + ن) [فا ، ع ، اعوان ، اس ، مذ] (۱) وخت ، موسم (۲) په پاكستان كښې يوه قبيله.

**آودس يا اَودس**:- (آوْ يا اَوْ + دَ + سْ) [اف ا پ (سيند) فا: آبدست ، اس مذ ، وا ، ج : آودسونه يااُوْدسونه] اودس چار اندام ، د نمانځۀ دپاره مخ لاس او پښې وينځل ، لكه :'' اودس ته اوبۀ ګرمې كړه''

**اورد**:- (آ + وُرْ + د) د آمد ضد ، كوم شاعر چې په زور او وكوښښ څۀ شعرونه جوړ كړي نو وائي چې دا آورد دے.

**آورول يا اَوْرول** :- (آوْ يا اَوْ + رَ + و + ل) [اف ،پ (سيند) مص،مت] (و ـــ آرْوول)

**آوربدل يا اَوربدل**:-(آوْ يا اَوْ+ رې+ د + ل) [اف : پ (سيند) مص لا] (و -آروبدل)

**ـــــ كېدل** :- (اف) اص : عام نۀ استعمالېږي

**آوربدهٔ یا اَوربدهٔ**:- (آؤ یا اَؤ + رې + دهٔ) [اف ، پ (سیند) حمص ] (و- آروبدهٔ)

**آورې پاؤړې یا اَورې پاوړې**:- (آؤ یا اَؤ + رې + پاؤ + ړې) [پ ، اس ، مر ،مؤ ، ج ] اورې پوړې ، کړې خبرې ، اړپېچ خبرې ، ګډې وډې ، اونې پونې۔

**آوړے داؤړے**:- (آؤ + ړې+ داؤ + ړې) [پ (خل) اس ، مر ، مؤ ، ج ] (و ـــ آورې پاؤړې)

**آوربدل یا اَوربدل**:- (آؤ یا اَؤ + رې + د + ل) [پ ، مص لا ] (۱) په بل مخ کېدل ، اپوټه کېدل ، (۲) د دېوال نه بل خوا ته ټوپ وهل ، (۳)په غرهٔ پنا کېدل ، د غرهٔ نه پناه کېدل (۴) د څهٔ خبرې نه منکرېدل ، دلوظ نه ګرځېدل (۵) په څهٔ جنجال کنبې ګېرېدل ، په څهٔ بلا اخته کېدل (۶) په انډ اړېدل ، په اړخ اړېدل ۔

**آوسېلل یا اَوسېلل**:- (آؤ یا اَؤ +سې + لَ + ل) [اف ، پ (سیند+ قاموس) مص مت] (۱) سوړ اسوېلے کول ، اوږد اسوېلےاخستل (۲) سلګۍ یا اسوېلے کول (۳) په زوره ساه اخستل۔

**آوسېلے یا اَوسېلے**:- (آؤ یا اَؤ +سې + لَے) [اف ، پ (سیند) اس ، مذ ، وا ، ج : آوسېلي ] اسوېلے ، سړه ساه ، اوږده ساه۔

**ـــ اېستل** :- (اف) اص: اسوېلے ويستل،سړه ساه اېستل، اسوېلے کول۔

**آوښتل**:- (آؤ + وَخْ+ یا وَشْ + تَ+ لْ) [پ ، مص لا] (و ـــ اوړېدل)

**آوښتے یا اَوښتے**:- (آ یا اَ+ وَخْ + یا وَشْ + تے) [پ ، حمص ] (۱) په بل مخ شوے ، پرمخې ، اپوټه اوړېدلے ، اپوټه شوے۔(۲) څهٔ اندام بې ځایه شوے۔

**ـــ سترګې** :- (ـــسْ + تَرْ +ګې) [پ،اص ] بدلې سترګې ، اړولې سترګې، بې پروا

**آوښے یا اوښے** :- (آؤ یا اَو + خے یا شے) [اف، پ (سیند) اس، مذ ،وا ج : آوښي ] اوښے،اخشے،اشخے ،اوخشئے ، اوخښے ، (۱) د ښځې ورور ، (۲) د خور خاوند

**آوئ** :- (آ + وَ + ئ) [پ (خ + ګن) اس ص ، مؤ ، وا ] (۱) اص : اوي مزکه ، تنتونه، آبي ، د اوبو لاندې مزکه ، (۲) اس : پجه ، د کولالتو د لوښو پخولو بټۍ ، ځون ، ځونه (ګن)

**ـــ کېدل** :- (اص) وار خطا کېدل ، ترټېدل ، داسې بې حوصلې کېدل چې ګډې وډې خبرې شروع کړي۔ په داسې حال کنبې وي چې سترګې ئې سرې راختلې وي ، اوتر اوتر ګوري او په نهٔ څهٔ خبره قهرېږي۔

**آوے**:- (آ + وے) [پ (وز) اس ، اش ] دغه ، آئے ، هئے ، هائے ، لکه :" کتوب آوے ده " (کتاب دغه دے)

**آه**:- (آ +ه) [فا ، مذ ، وا ، ج : آهونه ] (۱) د افسوس ټکے (۲) د تکلیف یا درد نه د آه آواز ويستل ،

**ـــ کول** :- (اص ) (۱) د مصیبت ، تکلیف یا بیمارۍ په وخت فریاد کول ، د خولې نه آه ایستل (۲) د څهٔ غم د وجهې سړه ساه ایستل ، سارهٔ اسوېلي کول۔

**ـــ و ژړا** :- (اص )دغم ټکے ، فریاداو ژړا ،د چا په غم کنبې سارهٔ اسوېلي او ژړا انګولا۔

**ـــ اه** :- (ـــ آه ) [فا،د افسوس ټکے ] (۱) په یو مخ فریاد کول ،په یو مخ سارهٔ سارهٔ اسوېلي د زیات درد په وخت داسې ویلې کېږي۔(۲) د حېرانګۍ په ډول وئیلے شي۔

**ـــ فریاد** :- (اص ) اسوېلي او فریادونه ،ژړا انګولا ، سارهٔ اسوېلي او د غم نعرې۔

**دـــ غشے** :- (اص) بد دُعا ، ښېره ، د فریاد غشے۔

**د زړهٔ ـــ** :- (اص) هغه اسوېلے او فریاد چې د زړهٔ د تل نه راپورته شوي وي۔ رښتونے اسوېلے۔

**آها** :- (آ + ها ) [اف ، پ (سیند) (۱) د حېرانتیا او خوشحالۍ ظاهرولو په موقع دا آواز د خولې نه ووځي۔واه واه ۔(۲) په ځینې موقعه د غم او افسوس په وخت کنبې هم د خولې نه ووځي۔ لکه:" آها یا هائے هغه کله مړ شوے دے "۔(۳) د یار اشنا د ناڅاپې ملاقات په وخت کنبې هم دا ټکے د خولې نه ووځي۔لکه : "آها ، دا تهٔ د کومه؟"

**آهک** :- (آ +هک) [فا ، پشتو (روسي قاموس) اس ، مذ ، وا ] چونه سفېدي۔

**آهن** :- (آ +هـ+ نْ) [فا ، آهن ، اس ، مذ ، وا ] اوسپنه ، فولاد

**آهنګ**:- ( آ +هَنْ + ګ ) [ فا ، پ ( راورټي ) اس،مذ ، وا ، ج: آهنګونه] (۱) قصد ، اراده ، مطلب (۲)آواز ، غږ ، لکه : " د کاګړو غاړې هم ځینې مخصوص ډولونه او آهنګونه لري " (۳) نغمه ، سُر ، وزن (۴) طریقه، طرز

**آهنګر یا آینګر**:- (آ +هَنْ + ګ + ر ، یا آ + ین + ګ + ر) [فا ، اس ، مذ، وا ، ج : آهنګران ] ( مؤ ، وا ، آهنګره + ج ، آهنګرې ) د اوسپنې کارکوونکے ، لوهار ، اینګر ، آهینګر ، پَش (ب، خ +ګن)

**آهو**:- (آ +هُوْ ) [ فا ، پ (راورټي) اس ، مذ،وا،ج : آهوان ] (۱) هوسۍ ، اوسۍ ، سرژه ، لکه شوې ، لکو شوې ، نرکشه۔غرڅنۍ ، نخچیره۔ (۲) معشوق ته اشاره۔

**ـــ چشم** :- (اص) تور سترګے ، د اوسۍ په شان غټې تورې سترګې ، ښکلې سترګې ، معشوق۔

**ـــ سترګې** :- (اص) (و ـــ آهو چشم)

**دختا ـــ** :- لُغ : د ختا او ختن اوسۍ ، اص : ډېر ښکلے او ښائسته معشوق۔

**آهورې**:- (آ +هُوْ+ رې ) [ فا ، پ ( روسي قاموس ) اس ، مذ ، وا ] اَورې ، اُورے اورے یو تخم دے چې تېل ترې نه اوباسي۔

**آئین**:- (آ +اي + نْ یا آ + يي +ن) [ فا ، اس ، مذ ، مو ، مذ ، ج : آئینونه ، مؤ ج : آئیني ] (۱) مذ ، دستور ، قاعده ، قانون ، لکه:" زمونږ آئین جمهوري دے " (۲) مذ : دود دستور ، رسم او رواج ، (۳) مؤ : آئینه ، اینه ، شیشه ، و وینه ایندارہ۔(۴) وخت ، ساعت ، (ع : آن)

**په ښهٔ ـــ** :- (پ + خ یا شهٔ ـــ) [پ ، اص ] په ښهٔ طریقه ، په ښهٔ شان غوره

**دین ـــ**:- (دي+نْ ـــ) (پ تر،اص) لُغ : مذهب او قانون، اص: عادت ، خوئي ، طبع ، مزاج۔

**ـــ ساز** :- ( ـــ سا+ ز ) [ فا ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : آئین سازان ، مؤ، وا : آئین سازه ، ج : آئین سازې ] قانون جوړوُونکے ، دستور تیاروونکے۔

**آئینه** :- (آ + اي + یا يي + نَ) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ج : ائیني ] (۱) اینه ، د مخ کتلو شیشه ووینه، آئین۔(۲) اینه ، ځیګر ، ینه

**ـــ زړهٔ** :- لُغ : د زړهٔ شیشه یا اینه ، اص : د زړهٔ صفائي ، پاکوالے۔

**ـــ د سکندر** :- لُغ : د سکندر آئینه ، اص : د اوسپنې نه جوړه آئینه ، وائي چې دا آئینه اول اول د سکندر په وښا جوړه شوې ده۔

**ـــ د ششت** :- (اص) د ششت یا شش اینه، شیشه یا ووینه، آرې، هغه آئینه چې د زنانوَ د کتې ګوتې په ګوتې کنبې د غمې په ځاے لګېدلې وي۔

**ـــ ښکاره کول** :- لُغ : آئینه څرګندول یا ښیل ، اص : څوک د خپل ځان د حقیقت نه خبرول۔چا ته خپل زور او طاقت ښکاره کول۔

ـــــ **کتل** :- لُغ : اینه یا ووینه لیدل ، اص : **خپل مخ یا ځان** په آئینه کښې لیدل او خپل ځان سنبالول۔

ـــــ **نېول** :- لُغ : اینه یا شیشه په لاس کښې **اخستل** ، اص : (۱) نائي چې کله د چا حجامت وکړي ۔ نو ورته آئینه ونیسي ، چې هغه خپل وېښتۀ وګوري ، او د هغۀ د کار په حقله ئې تسلي وشي ۔ (۲) د اختر وادۀ یا بلې ښۀ خوشحالۍ په موقعه نایان خپلو نائیکانو ته آئینه وړاندې کوي او هغوي ورته پیسې ورکوي ۔

**آیا** :- (آ+یا) [ فا ، پ (روسي قاموس) سوالیه ټکے ] (۱) د سوال ټکے ، لکه :"آیا دا خبره رښتیا ده "(۲) مور ،ادې ، بې بې (۳) هغه ښځه چې د چا ماشومانو ته پئی ورکوي ۔ لوبوي ئې ۔ او په بدل کښې د کور خلکو نه تنخواه اخلي ۔

**آیت** :- (آ+ یَتْ) (ع ،اس، مذ ،وا ، ج : آیتونه ، آیته (ع، ج : آیات) ] لغ : **دلیل** ، برهان ، اص : د قرآن شریف یوه جمله چې پوره مطلب ترې حاصلېږي ۔

**آیتي** :- (آ+ يَ + تي) [ پ ، اس ، ص ] لُغ : د آیت سره تعلق لرونکے ، اص: پخه ، رښتونے ، رښتیا ، صحیح ، کتابي ،

**آیت ګُرسي** :- (آ+ یت + کُرْ + سِي) [ ع ، آیَتُ الکُرسي ، اس مر ، مؤ ، وا ] د قرآن شریف د دریمې سپارې په شروع کښې یو ایت چې د وظیفې په ډول وئیلے شي۔لکه : "آیت کُرسي راباندې چُف که"

# ب

**ب** :-(بې) [حرف ، مؤ ، وا ، ج : بې ګانې] د پښتو ، عربي ، فارسي او د هغه نورو ټولو ژبو د الف بې د پټۍ دريم توری چې رسم الخط ئې د عربي نه اخستی شوی دی ـ (يادګيرنه) په پښتو کښې په ځينې ځايونو کښې "ب" په "و" بدلېږي ـ لکه : ساربان نه ساروان ـ

**بـا** :-(بـا پـه وزن د تـا ، مـا) [پ ، اس ، نـدا ، وا ، مـذ] (۱) د بابـا مخفـف (د ماشومانو په ژبه) (۲) د بيا مخفف (د ماشومانو په ژبه) (۳) د ګډې ، بېزې يا د غـوا اواز (۴) د ځينـو خلکـو تکيـه کـلام (۵) د فارسـي پـه ترکيـب د ځينـو الفاظو سره ورانديې په طور د سابقې لګولی شي ـ لکه : با ايمان ، با اصول او داسې نور ـ

**بـا اُو** :-(بـا + اُوْ) [پ ، اس ، مـذ ،وا : ج : بااُوګـان] د زنانـه ؤ د لاس يـو کالی ،کنګڼ ، باهو

باأو مې ؤ په لاس مې نۀ کړل

اوس د اشنا دربار ته ځم خالي لاسونه (ټپه)

**بايکړ** :-(با + اې + کَ + ړْ) [پ ، اس ،مذ] بائيکړ ، يو غړئيز بوټی ، بائينکړ ، په پړسېدلي ځای د پهې په ډول لګولی شي ـ

**باب** :-(با+ ب) [ع ، اس ، مذ ، وا] (۱) بابت ، نسبت ،متعلق ، په حقله ، پاره

د رحمان په باب چې وشو هغه وشو

(۲) د کتـاب يـو حصـه ، فصـل [ج : بابونـه] (۳) عنـوان ، موضوع ،مضـمون ، قسم ، باره ، ج : بابونه ـ

د خوشـحال خټـك پـه ژبـه برکـت شـه

چـې وئيـل کـا پـه پښـتو لـه هـره بـاب

(۴) دروازه ، ور ـ

د عـاشق نظر په خوړو په خواب نۀ وي

مراد ئې بې د يار له دره بل باب نۀ دی (رحمان)

(۵) طور ، طريقه ، چل ، شان ـ

چې اشراف د هسې خرسو په لاس کښېوزي

ترو خلاص به له خـونه په کـسوم باب وي (رحمان)

**بابا** :- (با + با) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : باباګان] (۱) پلار ، ابا ، د پلار د بللو غږ

مور او پلار خو نېک فرزند له خدايه غواړي

چې بد پخت شي ادې ځـۀ کـا بابا ځۀ (رحمان)

(۲) نيکۀ ،غورنيکۀ (۳) لوی بزرګ ، پير ، فقير ،استانه دار

ټولو باباګان رالړزول خو پټ په زړونو ګښې

ما پګښې ځرګنده کړه نو زۀ پکښې نشان شوم (بهادر شاه ظفر)

(۴) بوډا سپين ږيری ، مشر (۵) د طنز په طور وړوکي ته هم وئيلی شي ـ

**ـــــ ته تلل** :-(اص) (۱) د پلار يا نيکۀ په شان يا خوئې خصلت کېدل (۲) د چا بزرګ يا ولي زيارت ته تلل ـ

**ـــــ ته مخ کول** :-( ۱) د قسم خوړلو په نيت د بابا د استوګنې ځای يا د بابا د زيارت په لور مخ کول (۲) په ملاستې د بچي بابا پـه لـور مـخ اړول (۳) د قسم خوړلو په ډول قطب طرف ته مخ اړول ـ

**ـــــ ډبه کول** :-(اص) د زيارت تعويذ جوړول ـ د قبر چبوتره جوړول

**ـــــ کول** :-( اف) لُغ : پلار جوړول ـ اص : وهل ، ډبول ، ټکول ، (د ماشومانو په اصطلاح کښې)

**ـــــ کول** :-(اص) (۱) بابا جوړول (۲) د بابا اواز ويستل ، د بابا چغې وهل ، (۳) د ډېرو ماشومانو بابا ، بابا کول ـ

**ـــــ کېدل** :-(اص) (۱) بابا جوړېدل ، پلار جوړېدل (۲) د زيات عمر کېدل ، بوډا کېدل

**باباګان راپاره کول** :-(اص) (۱) د تکليف او مصيبت په وخت کښې منتونه نارې کول ـ د زيارتونو نه دعا غوښتل ، ژړا انګولا کول (۲) په زيارتونو قسم خوړل ـ

**باباګان رالړزول** :-(اص) و ـــ باباګان راپاره کول ـ

**باباګان يادول** :-(اص) و ـــ باباګان راپاره کول ـ

**باباجان** :-( بابا+ جا+ ن) [پ ، اس ، مر ، مذ ،وا] د مينې له کبله بابا ته بابا جان وئيلی کېږي ـ

**باباجي** :-(بابا + جي) [پ ، اس مر ، مذ ، وا] (۱) د مينې يا عزت لـه کبله پلار ، ترۀ ، نيکۀ ته وئيلی کېږي (۲) عام مشر يا سپين ږيري تـه وئيلی کېږي (۳) پيرانو ، فقيرانو او استانه دارو ته وئيلی کېږي ـ

**بابامړی** :-(بابا +مړ+ ړَی) [پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : بابامړي] لُغ : چې د چا پلار مړ وي ـ پلار مړی ـ اص : ظالم ته د ښېرې په ډول استعمالېږي ـ

توري سترګې ستا دي بيا په تورو رنجو کړې

دوه تورې سترګې بلا دي پرې وژنې بابا مړی (خوشحال)

**بابـائي** :-(بـا + بـا + ئـي) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مـؤ] پـه چـا منـت او ښېګړه اړول او کلانکاري کول ، ښِسون يا احسان اړول ـ

**ـــــ کول** :-(اف) اص ـ و ـــ بابائي ـ

**بابت** :-(بـا+ بَ+ تْ) [فا ، اس ، مذ] (۱) دپاره ، په حقله ، متعلق ، نسبت زمره ، (۲) ډېر معمولي يا کم قيمت ، مقدار ، تعداد ـ دوه پيسې هسې څۀ بابت نۀ دي خو په حساب کښې لويه خبره ده

**بابر** :-(با + بَ + رْ) [ت ، فا : شېر ببر ، اس ، مذ ، وا] (۱) يو مشهور بادشاه چـې پـه هندوسـتان کښـې د مغلـو د خانـدان بـانيؤ ـ پـوره نـوم ئـې ظهيرالدين محمد بابر ؤ (۲) يو عام نوم ، لکه بابر يا بابر خان

**بـابره** :-(بـا + ب+ رَه) [اف ، پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بـابري) يـو بـوټی چې خوند ئې تريخ وي ـ

**بابړي بانډه** :-(با + بَ + ړيْ + با + ن + ډَه ) [پ ، اس ، معر ، مؤ ] په کوهاټ ضلع کښې د یو کلي نوم ـ

**بابړ** :-(با+ب+ړ ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج ، بابړان (مؤ : وا: بابړه .ج: بابړې] د پښتنو د یوې قبیلې نوم ـ

**بابړزک** :-(با+ب+ړ+زَ+کْ ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ] یو قسم شینکے دے چې جرړې ئې د ګاځړې په شان او ماشومان ئې خوري ـ

**بابړه** :-(با+ب+رَه ) +[پ ، اس ، معر] د پېښور په علاقه کښې د چارسدې سره نژدې د یوکلي نوم دے ـ

**بابړه** :-(با+بْ+رَه ) [پ (ظفر) اس ، مؤ ] (۱) یو تریخ بوټے ، پاپړه (۲) (ج: بابړې) لاته ، ډوزه ، دوړه ـ

**بابړې** :-(با+بْ+ړې ) [پ ، اس ، مؤ ، ج ] لاپې ، دوړه ماري ، ډوزې ، غټې خبرې ـ د لویې خبرې ، باتې ـ

**بابړې ویشتل** :-(اص ) لاپې وهل ، دوړې ویشتل ، دوړه ماري کول ، ډوزې ویشتل ، غټې او لوئې خبرې کول ، باتې وهل یا ویشتل ـ

**بابغه** :-(با+بَ+غه ) [ب (ب ،خ ) اس ، مؤ ، وا ، ج : بابغې ] ببوغه ، ګوګوشتو ـ یوه مرغۍ ، د مرغۍ نوم دے ـ

**بابغې نیول** :-(ب + خ ) اص ، خواري زاري کول ، غریبي کول ، زیات خوارېدل ، نیست من کېدل ، نیست منبدل ـ

**بابک** :-(با + بْ + ک ) [اس ، مذ ، وا ] د عزت او مینې په ډول د بابا اسم تصغیر ، ایک ، پلار ، بابا یا هغه څوک چې د پلار په شان عزت ئې کولے شي ـ

**بابکو** :-(با + پ + کو ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] و ـــ بابک

**بابل** :-(با + ب+ لْ+ اس ، معر ، مذ ] د فرات دریاب په غاړه یو مشهور ښهر ؤ چې د یو زوړ سلطنت پایهٔ تخت ؤ ـ

**بابو** :-(با + بو ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] و ـــ بابک

**بابو** :-(با + بُو ) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج: بابوګان] (۱) د عزت یو لقب دے چې هر سرکاري اهل کار او منشي پرې یادېږي ـ مرزا ، منشي ، عام خلق معمولي لوستي سړي ته هم "بابوصېب" وائي ـ د ډاکخانې او رېل بابو (۲) (ظفر) د پښتنو په ځینو قبیلو کښې مشر سړي د پاره د عزت او احترام لفظ (۳) ځینې پلاران د مینې په ډول خپل کشر زوے ته بابو وائي ـ

**بابو جان** :-(بابو + جا + نْ ) [پ ، اس ، معر ، مذ ] د یو پخواني پښتون شاعر نوم ـ

**بابو جان** :-(با + بُو + جا + نْ ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ] د یو مارغهٔ نوم ، مشهوره ده چې هغه اواز کوي نو باران غواړي ، تیتارے ـ

**بابوري** :-(با + بُو + رِيْ ) [اف : پ (قاموس) اس ، جمع ] د مندتو خوبانو یا خُرمانو یو قسم دے چې ډېر غټ وي ـ

**بابوزے** :-(با+ بُو + زَے ) [پ (ب ، خ ) اس ، مذ ، وا ، ج : بابوزي] بادپکے ، ببوزے ، د لاس پکے ـ

**بابوزي** :-(بابُو + زِيْ ) [پ، اس معر ، مذ] د پښتو د یو خېل نوم ـ

**بابوزے** :-(با + بو + زَے ) [پ ، اس ، ص، مذ ،وا ، ج : بابوزي (مؤ ، وا ، ج : بابوزۍ ] د بابوزي قبیلې یو غړے ـ

**بابوګوټے** :-(بابو + ګو + ټے ) [پ ، اس ، تصغیر ، مذ] د سپکاوي او کرکې په ډول د بابو د پاره دا لفظ استعمالېږي ـ

**بابوګے** :-(بابُو + ګے ) [پ ، اس ، تصغیر ، مذ] و ـــ بابوګوټے ـ

**بابول** :-(با + ب + ول ) [اف: پ (قاموس) مص مت ] رواج ورکول ـ

**بابولاله** :-(بابو + لا+ له ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بابولالے ] یوه مشهوره سندره ده چې د ناوې د ناوې توب او سر جوړولو وغېره په وخت وئیلے شي او یو مخصوص وزن او اواز لري ـ

**بابولالې وئیل** :-(اف ) اص ـ بې ځایه او بې مطلبه خبرې کول ، اوتې بوتې وئیل ـ

**بابونګ** :-(با+ ب + وَ + نْ + ګ ) [اف ، پ (قاموس) حمص] بابونه ، رواج ورکول، ترتیب ورکول ـ

**بابونه** :-(با + ب + و + نه ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـــ بابونګ

**بابوُونکے** :-(با +ب + وُوْ + نْ + کَے ) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع مـذ ، وا ، ج : بابوونکي ] رواج ورکوُونکے ـ

**بابونه** :-(با + ب + و + نه ) [پ ، ع : بابونج ، فا: بابونق یا بابونک ، اس ، مؤ ، وا] یو خود رو بوټے دے چې د دارو په ډول استعمالېږي ـ وائي چې په عراق عرب کښې یو کلے بابونه نوم ئې ؤ چې په هغه کښې دا بوټے ډېر کېدو ـ ځکه ورته بابونه وئیلے شي ـ فارسۍ کښې هم عام طور سره ورته بابونه وئیلے شي ـ ددې بوټي ګل او جرړې د دارو په ډول استعمالېږي ـ تېل هم ترې نه وباسي ـ

**بابے** :-(با + بے ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، (مؤ: بابۍ ) ] (۱) د ځان نه کشر ته د مینې په ډول د خطاب کلمه (۲) د پښتنو د بابي قبیلې یو غړے ـ ( ج : بابیان )

**بابي** :-(با + بي ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] (۱) بابي ، وربندار ، د ورور ښځه ، د مشر ورور ښځه یا هغه وربندار چې په عمر کښې لویه وي ـ (۲) د لوے عمر ښځې ته هم د ادب د پاره بابي وائي ـ یا د چا عزتمند سړي ښځې ته د خوشامندې په طور بابي خطاب کوي ـ (۳) یوه فرقه چې محمدعلي باب خپل امام مني ـ (۴) د پښتنو یوه قبیله یا ډله چې خپل سلسله نسب د مهمند قوم سره ترې ـ

**بابي** :-(با + بِيْ ) [پ ، اس ، معر ، مذ ] د پېښور ضلعې په نوښار تحصیل کښې د یو کلي نوم ـ

**بابۍ** :-(با + بۍ ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] بابي ، وریندار ، د ورور ښځه ـ

**بابېدل** :-(با + بې + د + ل ) [اف: پ (قاموس) مص لا] رواج کېدل، رواج موندل، باب کېدل

**بابېدنګ** :-(با + بې + دَ + نْ + ګ ) [اف : پ (قاموس) حمص] بابېدنه رواج کېدنه، رواج موندنه ،

**بابېدنه** :-(با + بې + د + نه ) [اف : پ (قاموس) حمص ] رواج کېدنه، رواج موندنه ـ

**بابېدُونکے** :-(با + بې + دُو + نْ + کے ) [اف: پ (قاموس) اس، صف ، مذ ، وا ، ج: بابېدونکي ] رواج موندونکے ، رواج کېدونکے ـ

**بابېدهٔ** :-(با + بې + دهٔ + ] [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ بابېدنه

**بابېړنګ** :-(با + بې + ړ + نْ + ګ ) [پ ، اس ، مذ] د خېټې د چینجو د علاج د پاره استعمالېدونکے بوټے ـ

**بابېړے** :-(با+بې+ړے ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ] (۱) باوېړے ، بائیړے ، د یوې بیمارۍ بیا بیا راګرځېدل یا دوره کول ، په یو مرض بیا بیا بیماره کېدل ، د مرض دوباره راتلل ، (۲) د څهٔ مسئلې فېصله کولو نه پس په دغه لړ کښې څهٔ نور زیاتوب کول ، د فېصله شوې قیمت نه زیات غوښتل ، (۳) د مقرر مهر نه څهٔ زیاتوب کول ، د مقرر مهر نه زیات اخستل

**بابېز** :-(با + بې+ ز ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ(مؤ ، وا، بابېزه ، ج : بابېزې ) ] بېکاره ، خراب ، بد ، معمولي ، بې ښې توښې ، په کار نهٔ راتلونکے ، عبث ـ

**ـــــ سړے** :-(اف ) اص ـ بېکاره سړے ، بې فائدې سړے ، بېښې توښې سړے ، بې وجهې سړے ـ

**بابېزي** :-(با + بې + زي ) [اف : پ (قاموس) اص ] بې کاره او فضول خبرې ،

عبث خبرې ، بې فائدې خبرې.

**بابېزاے** :-(با + بې + زا + ے) [پ (وز) اس ، مذ ، وا ، ج: بابېزي] و ــ بابوزے.

**بابېزوکے** :-(با + بې + زُو + کے) [اف : پ (قاموس) اس ، تصغير ، مذ ، وا ، ج : بابېزوکي] ناچيز ، وران ويجاړ ، نروچکے ، کمزورے ، مانده ، ډنګر ، خوار.

**بابېژنه** :-(با + بې + ژَ + نَه) [پ (وز ، ب ، خ) اس ، مؤ ، وا] رېندې ، سره لړې ، سرلړلے ، يخه تبه ، (ګن) په تبه کښې چې په سرې يخنې راشي او سرے رپوي يا خوځوي ، دې ته بابېژنه وائي. هم دغسې د ډار ، يرې او غصې په حالت کښې هم بابېژنه راځي.

**باتو** :-(با+ تَ + ر) [پ (سو) اس ، مذ ، وا ، ج : باترونه] کتيبه ، هغه لرګے چې دېوال جوړولو په وخت د هرې ردې نه پس د مضبوطيا دپاره به په برجونو او قلاګانو کښې لګولے شو.

**باتريا** :-(با + تَ + رْ + يا) [پ ، اس ، ص] هغه سړے چې اوتې بوتې وائي او بې ځايه خبرې کوي. بد حاله ، پرېشانه ، لېونے ، اوتر باسر.

د خوا خوږو نصيحت پرې اثر نۀ کا
با تريا او سر کودن وي لکه زۀ (عليخان)

**باتل سپر** :-(با+ تَ + ل + سې + ر) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د ښځو يو قسم کالے دے چې په غاړه پورې ئې ترې.

**باتور** :-(با + تُو + رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : باتوران ، (مؤ ، وا : باتوره ، ج : باتورانې)] (۱) شاهين ، باز ، يو ښکاري مارغۀ چې غوښه خوري (۲) بادر ، زړۀ ور ، تورزن ، مړنے.

نادان دے کــــه دانا دے د هر چا نه عقـــل اخله
باتــور غشے خطا کړي د هلک غشے رسا شي (خوشحال بابا)

(۳) د سترګې تور ، د سترګې کسے.

**باتور باتور کېدل** :-(اص) ځا ن زړۀ ور ځرګندول ، د خپلې زړۀ ورتيا اظهار کول ، نر نر کېدل.

**باتوره** :-(با + تُو + ره) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : باتورانې] د توره ، دهتوره ، دالتوره ، يو زهردار بوټے.

**باتوري** :-(با + تُو + ري) [اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ، وا] بادري ، تورزني ، زړۀ ورتيا ، نرتوب ، تُوره ، مړانه.

ـــــ **کول** :-(اص) توره کول ، نرتوب کول ، مړانه کول.

ـــــ **کوونکے** :- اس ، فا ع) تورزن ، زړۀ ور ، بادر.

**باتۍ** :-(با + ت + ی) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، باتيانې] (۱) د ډيوې باتۍ ، باتې (وز) ـ بتۍ (ګن)

باتۍ د تېلو په زور سوځي
ماته د يار غمونه اور شول و ئې سومه! (ټپه)

يا لکه مړه باتۍ د شمع په محفـــــل کــښې
خود په خود په خپل ماتم کښې سياه پوش يم (کاظم خان)

(۲) د مالوچو د چيرو نه جوړه په زخم کښې کښېښودلو دپاره باتۍ ، د زخم فتيله ، (۳) په کلاه جوړولو کښې د سيخ په زور چې مالوچ ورننه کولے شي. هر هغه څيز چې د بتۍ په شکل کښې وي (۴) د فوځ يا د پوليس د سپاهي نه اوچت عهده دار چې په مټ باندې ئې يوه دوه يا درې فيتې لګيدلې وي. هغه فيتو ته باتۍ وئيلے شي (۵) چور بتۍ ، ببتري ، ټارچ ، لالټين ، ډيوه.

ـــــ **ټومبل** :-(مص مت) (۱) په څۀ زخم کښې د مالوچو يا چيرو باتۍ ورکول (۲) څۀ سورے په مالوچو بندول ، په غوږ يا پوزه کښې د مالوچو پونۍ کښېښودل.

ـــــ **جوړول** :-(مص تر) (۱) د ډيوې ، لالټين وغيره دپاره د مالوچو باتۍ تيارول يا غښتل (۲) د ټوپک د دارو باتۍ تيارول.

ـــــ **کول** :-(مص مت) مالوچ يا چيره يا رنجه د باتۍ په شکل کښې جوړول يا مزې کول ، باتۍ په شان کول.

ـــــ **کښېښودل** :-(مص تر) (۱) په زخم کښې د دارو باتۍ اېښودل. (۲) باتۍ يا شمع په يو ځاے کښېښودل (۳) ډئيناماۀټ د خلاصولو دپاره هغه تار چې په مېنځ کښې ئې دارو وي.

ـــــ **لوګول** :- اص. باتۍ په داسې طريقه بلول چې لمبه نۀ کوي. رو رو لوګے ورکوي. عموماً اګرباتۍ د خوشبو پاره لوګولے شي

ـــــ **ورکول** :-(اص) و ــ باتۍ ټومبل

**د غوږونو نه باتۍ ايستل** :- مح. لُغ : د غوږونو نه باتۍ لرې کول. اص : خبره په غور سره اورېدل. خبرې ته غوږ کښېښودل.

**باتي** :-(با+تِيْ) [پ ،س : بتي ، اس ، مؤ ، وا : ج : باتيانې] و ــ باتۍ.

ـــــ **بلول** :-(مص تر ، مت) په باتي اور پورې کول ، باتي روښانه کول ، باتي لګول.

ـــــ **بلېدل** :-(مص تر ،لا) باتي روښانه کېدل ، په باتي اور پورې کېدل.

ـــــ **لګول** :-(مص تر ، مت) (۱) و ــ باتي بلول (۲) باتۍ ته اور ورکول.

**باتي دار** :-(باتي + دا + رْ) [فا ، تر ، اس ص ، مذ ، وا] باتۍ لرونکے باتي واله ، چې باتۍ پکښې وي.

ـــــ **ټوپک** :-(اص) د زړې زمانې يو قسم ټوپک چې دارو ته د باتۍ ورکولو سره به چلېدو

**باتېرے** :-(با+تې +رے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : باتېري] مرږ ، بتېرے

**باتينګړ** :-(با+ تي + نْ + ګ+ړ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : باتينګړان] (۱) تور باتينګړ ، يوه مشهوره ترکاري چې اوې اوې رنګ ئې وي او ګول شکل لري. باتينګڼ ، باتينګڼ ، بانجن ، "ادې مې لېونۍ شوه چې په ژمي باتينګړ غواړي" (۲) اف : انج ، هنج ، انجه.

**اوږدۀ باتينګړ** :-(اص) دباتينګړو يو قسم دے چې ګول نه وي اوږدۀ وي.

**سرۀ باتينګړ** :-(اص) ټماټر ، کشميري

**باټ** :-(با + ټْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : باټونه] (۱) هغه خاص قسم کاڼے (څرخ چې تُوره ، چاړۀ يا چاقو وغيره پرې تېرۀ کوي. سان (۲) د ټوپک د ګولو باړ ، په هېڅ ګولۍ چلېدنه ، (۳) د ملنډې يا پيچمې په دود لمسون (۴) يو قوم دے چې هغوي په وادۀ ښادۍ کښې سندرې وائي. (بهاټ) د طنز په ډول خوشامندګر ته وائي.

ـــــ **توب** :-(اص) خوشامندګري

ـــــ **چلول** :-(اف) اص. (۱) په يو مخه د ټوپک ګذارونه کول ، باړ ورکول ، په هېڅ ګولۍ چلول (۲) (ظفر) په چا د قهر او غصې اظهار کول. په چا خپل سوخت ايستل.

ـــــ **کول** :-(اف) اص. (۱) تېرۀ کول ، تُوره ، چاړه يا چاقو وغيره په سان خېژول (۲) د ټوپک د ګولو باړ ورکول ، په هېڅ ګولۍ چلول

ـــــ **ورکول** :-(اف) اص. څوک چاته لمسول ، پارول.

**باټ** :-(باټ) [پ ، ه ، بهاټ ، اس ، مذ ، وا ، ج : باټان] (۱) د ميراثيانو يو ذات چې ټوقې ټقالې کوي. اص :کرتو ،بکواسي خوشامندګرے (خل) (۲) د غونډوسکې لرګے ، د لوبو لرګے

**باټاره** :-(با+ټا + ره) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : باټارې] غټه غټه ږلۍ.

**باټړ** :-(با + ټْ + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، و : (مؤ ، وا : باټړه ، ج : باټړې)] باټک ، باټو ، باټې ويشتونکے ، دوړې مار ډوزې وهونکې ، لا فې وهونکې ، لوېې او غټې خبرې کوونکے.

**باټک** :-(با + ټ [کْ] [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا : باټکه ، ج : باټکې) ] و ـــــ باټړ .
**باټو** :-(با + ټُو) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا] و ـــ باټړ
**باټول**:-(با + ت + و + ل) [اف : پ (قاموس) مص مت] لمسول ، پارول
**باټه** :-(با + ټه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، ج : باټې] ډوزه ، دُوړه لافه ، غټه او لويه خبره (دا لفظ عموماً د جمع په صيغه کښې استعمالېږي)
**باټې** :-(با + ټې) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، ج ، وا : باټه] ډُوزې ، دُوړې ، لافې ، غټې او لوئې خبرې ، بابړې .
**ـــــ کول** :-(اف) اص .و ـــ بابړې ويشتل .
**ـــــ وهل** :-(اف) اص .و ـــ بابړې ويشتل .
**ـــــ ويشتل** :-(اف) اص .و ـــ بابړې ويشتل .
**باټے** :-(با + ټے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ،وا] يو دوه لاستے لوښے چې په هغه کښې مهې وغېره پخولے شي .کړهی (پ ، خ)
**باټينګڼ**:-(با+ټي+نْ+ګ + ن + ڼ) [پ ، اس ، مذ ، وا] و ـ باټينګړ
**باج** :-(با + ج) [فا ، اس ، مذ ، وا] (۱) د مزکې محصول ، ماليه ، قلنګ (۲) خراج چې يو زبردست بادشاه خپل ماتحت کمزوري بادشاهانو نه د نقد يا جنس په شکل کښې اخلي

په ما باج د سلېمان لـکه مـور نشته
پـه يوه دانـــه قانع يم لـــــه خرواره (کاظم خان)

(۳) هغه رقم چې د څۀ خاص مقررې قاعدې مطابق حاکم د سوداګر پېشه خلقو نه اخلي ، ټېکس (۴) بې ځايه خرڅ ، فضول خرڅي .
**ـــــ اخېستل** :-(اص) خراج اخېستل ، محصول يا ټيکس اخېستل
**ـــــ غوښتل** :-(اص) خراج طلب کول ، محصول يا ټيکس غوښتل
**ـــــ کول** :-(اص) بې ځايه خرڅ کول ، فضول خرچ کول .
**ـــــ مقررول** :-(اص) د خراج د رقم يو خاص مقدار معين کول .د يو زبردست بادشاه خپل ماتحت بادشاهانو باندې د يو خاص رقم يا محصول .د يو مقرر ميعاد نه پس د ادا کولو حکم کول
**باج خواه** :-(باج+ خوا + ه) [فا ، اس ، فا ، ع ، مذ ،وا ، ج : باج خواهان] خراج يـا محصـول غوښـتونکے ، محصـول يـا ټـيکس طلـب کـوونکے يـا غونډوُونکے ، باج اخېستونکے ، باج ګير .
**باج دار** :-(باج + دا +ر) [فا ، اس ، فا ، ع ، مذ ، وا ، ج : باج داران] باج يا محصـول غونـډوُونکے ، د خـراج يـا مـاليې اخېسـتونکے ، ټـېکس ټولوونکے .
**باج ګذار** :-(باج + ګُ + ذا + رْ) [فا ، اس ، ص ، وا ، ج : باج ګذاران] خراج پرېکوُونکے ، محصول يا ټېکس ورکوونکے .
**باج ګير** :-(باج + ګيْ + رْ) [فا ، اس ، فاع ، مذ ، وا ، ج : باج ګيران] و ــــ باج خواه .
**باجا** :-(با + جا) [پ ، اس ،معر ،مذ] په صوابي ضلعې کښې د يو کلي نوم
**باجره** :-(با + ج + ره) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : باجرې] د غلې يو قسم دے چې د نرې جوارو نه هم کمه دانه لري .په شګلنه علاقه کښې پېدا کېږي . خلق په ژمي کښې ددې غلې ډوډۍ (پياځه) خوري .
**باجري** :-(با+ ج + رِيْ) [پ ، اس ، مؤ] نرې نرې کانړي چې د عمارت او سړک په پخولو کښې استعمالېږي .
**باجړ** :-(با+ جَ + ړْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : باجړونه] (۱) تېز او تُند باران ، په شېبو شېبو باران (۲) (ظفر) تالان ، ګړبړ
**ـــــ جوړول**:-(ظفر) اص .تالان جوړول ، ګړبړ کول ، بدنظمي پېدا کول .
**ـــــ ګډول** :-(ظفر) اص ، تالان جوړول .
**باجوړ** :-(با+ ج + و + ړ يا با + جو + ړْ) [پ ، اس ، معر ، مذ] د کوه هندوکش په سوېلي طرف د پېښـور په قطبي نمر پرېواتۀ خوا کښې د پښتنو يوه لويه پراخه غرئيزه علاقه ده .
**باجوړخان** :-(باجوړ+ خـان + نْ) [پ ، اس ، معـر ، مـذ] پښـتنو کښـې د سړي نوم
**باجوړے** :-(با + جو + ړَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : باجوړيان (مؤ ، وا : باجوړې) ] د باجوړ د علاقې اوسېدونکے سړے .
**باجونکه** :-(با+ جَو+ نَ+ که) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] يوه تور رنګې مرغۍ ده چې د کونترې نه وړه وي او لويه لکۍ لري .د سحر وخت کښې ډېر په خوږ اواز چغار کوي .تُوراني ، توراڼکه ، (سو) برېيته .
**باجه** :-(با+جَه) [اف:پ قاموس) اس،مذ ،وا ،ج :باجه ګان] د ښينې خاوند ، ساندو
**باجه** :-(با+ جَه) [ه ، پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : باجې] د ساز او موسيقۍ يو اله ، د غږېدو يو ساز ، د ګوتو باجه ، هارمونيم يا ګرامو فون وغېره .
**ـــــ ږغول** :-(اص) باجه غږول ، باجه وهل .
**ـــــ ږغېدل** :-(اص) باجه غږېدل ، باجه وهل کېدل .
**ـــــ وهل** :-(اص) و ـــــ باجه ږغول .
**باجي** :-(با + جي) [پ ، اس ، مذ] باباجي ، پلار يا نيکۀ يا داسې بل سپين ږيرے مشر د باجي په نوم بللے شي .
**باچ** :-(با+چ) [پ ، اس ، مذ ، وا] بائېلات ، پړَه ، لرکېدل .
**ـــــ کول** :-(اص) بائېلل ، خصوصاً په شرط يا جوارۍ کښې بائېلات کول .
**ـــــ کېدل** :-(اص) بائېلات کول ، بائېلودل ، پړکېدل .
**باچا** :-(با + چا) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : باچايان يا باچاهان] (۱) بادشاه ، پاچا (سو) پوچا (هزاره ، پيچا (کوهستان) د يو ملک والي يا واکدار (۲) ولي ، بزرګ ، د لوئې مرتبې خاوند ، سېد ، ستانه دار ، خلکو دپاره د عزت او احترام لفظ .
**ـــــ کول** :-(اص) بادشاه جوړول .
**ـــــ کېدل** :-(اص) بادشاه جوړېدل ، په تخت کښېناستل .
**باچا باچا کول** :-(اص) "باچا باچا" د ماشومانو يوه لوبه ده چې په هغې کښې داوائي "باچا باچا لُور راکه"
**باچا جان** :-(اص) د پښتنو يو عام نوم .د "باچا" سره يو ځاے کړې شوي نورو ټکو سره هم نومونه جوړېږي .لکه : امير باچا ، چن باچا ، خان باچا ، سېد باچا ، ګل باچا ، ميان باچا ، مير باچااو نُور باچا وغېره .
**باچاجي** :-(اص) پښتنائۀ عام خلق ستانه دارو ، سېدانو ، پيرانو او بزرګانو دپاره دا ټکے استعمالوي .
**باچا خان** :-(اص) بادشاه خان ، عبدالغفار خان د پښتو د سُرخپوش جماعت ليډر چې عام پښتانۀ ئې په دې نوم يادوي .
**باچا خره** :-(باچا + خَ + ره) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] يوه خړ رنګې حشره ، باچا ګډه .
**باچا سړے** :-(اص) لُغ : بادشاه سړے ، د بادشاه په شان عادت خصلت لرونکے سړے ، اص (۱) بې پروا ، بې فکره ، ساده (۲) فراخ دل ، ستر زړے .
**باچا صېب** :-(اص) سېدانو او ستانه دارو ته د عزت له کبله داسې خطاب کولے شي .
**باچا ګل**:-(اص) کم عُمره سېد ياستانه دار دپاره دا ټکے استعمالېږي
**باچاګے** :-(باچا + ګَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] يو قسم سپين ورکوټے کب (مهے) چې ډېر خوښولے شي .
**باچا ميان** :-(اص) دا لفظ هم د باچا صېب په شان استعمالېږي .د کاکاخېل ميانګانو او فقيرخېل خلقو دپاره ئې عموماً خلق استعمالوي .

**باچانه** :-(با + چا + نَه) [پ ، اس ، معرفه ، مؤ ، وا] (۱) په پښتنو کښې يو زنانه نوم (۲) د باچا (بادشاه) په شان ، د بادشاه غوندې ، بادشاهانه ، بادشوهانه (وز)

**باچانۍ** :-(با+ چا + نَ + يـی) [پ، اس، تصغير ، مؤ، وا] د مينې يا سپکوالي په وجهې د باچانه په ځاے استعمالېږي. لکه "يَه باچانۍ"

**باچائي** :-(با+ چا + ئي) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : باچايانې] باچی ، باچهي ، باچشوئي (وز) بادشاهي ، باچشائي (گن)

**ـــــ خوئي** :- لُغ : د بادشاهانو په شان خوئي. اص : ښهٔ خوئي .صبر ، قناعت ، بې پرواطبيعت ، ساده طبيعت.

**ـــــ کول** :-(اص) حکومت کول ، حکومت چلول ، بادشاه کېدل

**ـــــ ماملې** :-(اص) بادشاهي معاملې ، باچی ماملې ، د حکومت خبرې ، ډېرې لوئې معاملې يا خبرې ، د لوے شان و شوکت خبرې

**باچکه** :-(با + چَ + کَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا : ج : باچکې] د بزې (اُوزې) يو قسم چې په افغانستان کښې ملاوېږي.

**باچهي** :-(با+ چ + هـيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : باچهی ـــ باچهي گانې] و ـــ باچائي.

**باچو مړ** :-(با+ چُو + مَ + ړْ) [پ (خل) اس ،مذ] يوه خشکه مېرا چې په کښې بوټي گياه نشته.

**باختر** :-(با + خ + تَ + رْ) [فا ، اس ، مذ ، وا] (۱) مغرب يا مشرق ، (۲) د زړې زمانې يو ملک چې د کوه هندوکش او دريائے جيحون په مېنځ کښې پروت دے. او دارالخلافه ئې بلخ ده. نن پرون د افغانستان قطبي علاقه په دې نوم يادېږي. د سکندراعظم د حملې نه وروستو تر ډېره دلته د يونانيانو حکومت پاتې شوے دے.

**باخته** :-(با + خ + ته) [فا ، ص ، مص ، باختن] الوتے ، ورتلے ، په هوا شوے

ملــک د مال وي ،تـل باختـــه د ازادۀ
دا بازي لکه گوئے ، ځکه په خپل سر کړم (کاظم خان)

**باخملی** :-(با+ خْ + مَ + لَ + يَی) [پ (راورټي) اس ، مؤ ، وا ، ج] (۱) بخملی (ظفر) ، سره ناوې ، يو سُور رنگې ورکوټې چينجې چې په باران کښې پيدا کېږي. (۲) د يوې مرغۍ نوم چې د شپې اوازونه کوي.

**باخو** :-(با +خو) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : باخوگانې] د اولاد مور ، د ماشومانو مور ، ببو ، باگره، باگو، باگولی ، باگوه.

**باخه** :-(با + خَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : باخې] بابنه ، يو ښکاري مارغۀ

**باد** :-(با + د يا بو + د) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بادونه ، بودونه، بودينه] (۱) هوا ، اوا ، اوو ، ابشمه ، بود

د حباب په شان همه له شرمه اب شي
کــه ئې لرې چرې باد د مخ نقاب کا (کاظم خان)

(۲) د خولې د طرف نه يا د کښته د طرف نه د معدې خرابه هوا ، اربړے ، ډرکے ، تيـز ، گـوز ، پوسکی ، تېغ (۳) هغـه بيمـاري يـا مـرض چـې د بـدن پـه اندامونو او جوړونو کښې درد پيدا شي. (۴) بدائي ، لوئي ، تکبر ، غرور (۵) پرسوب (۶) رُخ ، انداز.

**ـــــ اچول** :-(اص) (۱) باد ډکول ،څهٔ څيـز د بـاد نـه پـرسو (۲) بـاد يـا هـوا خارجول، باد پرېښودل .تيز ، پوسکی ، تېغ يا پسکه پرېښودل (۳) پړه يا شکست منل ، مقابلې نه تښتېدل ، مېدان پرېښودل.

**ـــــ اخېستل** :- لُغ : د څهٔ څيز د باد نه ډکېدل يا پړسېدل ،اص : (۱) د باد په مرض اخته کېدل بادگير کېدل (۲) يخې يخې هوا ته ودرېدل ، هوا خوري کول.

**ـــــ ازادول** :- لُغ : باد خلاصول ، باد تـه لار پرانستل .اص : تيـز ، پُسکی ، پسکه، تېغ اچول يا پرېښودل.

**ـــــ ازادېدل** :- لُغ : د هوا د راتلو دپاره ور ، کړکی يا باری خلاصېدل ، اص : د خېټې اړ شوے باد خلاصېدل.

**ـــــ الوتل** :- لُغ : هوا چلېدل ، باد ورتـل ، د هـوا چلند شروع کېدل اص . (۱) وبائي مرض راتلل (۲) د زمانې رُخ بدلېدل ، د ژوند د اقدارو بدلېدل.

**ـــــ الوزول** :-(اف) لُغ : هوا الوزول. اص (۱) نامعقوله او عبث خبرې کول (۲) د دروغو خبرې جوړول ، هسې څهٔ وئيل (۳) تيز ، پُسکی ، پسکه يا تېغ پرېښول.

**ـــــ او باران** :- لُغ : هوا او ځاځکي . اص : سخت زول او باران ، طوفان ، د هوا او د ځاځکو يو ځاے راتلل.

**ـــــ اوکښل** :- لُغ : د پړسېدلي څيز نه باد خارجول يا ويستل. اص : (۱) د چـاکبر ،لوئي ، بـدائي او غـرور ختمـول يـا مـاتول (۲) بـې عزتـه کول،شرمول ، سپکول (۳) شکست يا ماتې ورکول ، لړول ، په شا تنبول

**ـــــ ايسارول** :- لُغ : د باد لار بندول ، د باد مخه بندول ، اص : د خېټې باد په زور ټينگول ، تيز ، پُسکی نۀ پرېښول.

**ـــــ ايسارېدل** :- لُغ : د هوا بندېدل ، باد نۀ الوتـل ، اص : په خېټه يا کولمو کښې باد بندېدل ، د باد نۀ وتلو په وجه په خېټه کښې درد پيدا کېدل.

**ـــــ ايستل** :- اص. (و ـــ باد اوکښل)

**ـــــ بندول** :-(لُغ) د هوا مخه بندول. اص : (۱) په څۀ څيز کښې هوا ډکول (۲) د څۀ بيماری يا د قابض خوراک په وجه په خېټه کښې هوا جمع کېدل.

**ـــــ بندېدل** :- لُغ : د هوا مخه بندېدل. اص : (۱) په څۀ څيز کښې هوا ډکېدل (۲) د څۀ بيماری يا د خوراک په وجه په خېټه کښې هوا جمع کېدل.

**ـــــ پرېښودل** :-(اص) (۱) تيز ، پسکی ، پسکه يا تېغ اچول (۲) ماتې منل ، سرټيټول ، (۳) يرېدل ، زياتې يرې اخستل.

**ـــــ پرې کېدل** :-(اف) اص. باد خلاصېدل ، د خيټې باد وتـل ، تيـز پُسکی ، پسکه يا تېغ اچېدل.

**ـــــ په توره وهل** :-(اف) اص. (۱) خپـل ځـان ډېر تـورزن او مړنے گڼل ، بـابړې ويشتل ، لاپې وهل (۲) بې ځايـه کوښښ کـول ، ناممکن کـار کـول ، په هوا کښې خبرې کول ، ناشوني کار ته لاس اچول.

**ـــــ په گوزه پرېښول** :- مح. و ـــ باد اچول.

**ـــــ په کوزه پرېښودل** :- مح. و ـــ باد اچول.

**ـــــ په کوزه تلل** :- مح. و ـــ باد اچول.

**ـــــ پيما** :-(اف) لُغ : هوا پيمدل ، اص : خوشے کـار کـول ، عبث منصوبې ترړل ، بې فائدې کار کول ، عبث او خوشې خبرې کول ، باد پيزي.

**ـــــ تبل** :-(ب ، خ) اص. باد ټکورول ، د بادو د درد ځاے تبل يا ټکورول ، باد نيولي اندام ته ټکور ورکول.

**ـــــ ته غپل** :-( ظفر) لُغ : هوا ته غپـل ، اص : هر چا تـه خولهٔ اچـول ، هېڅ بې هېڅه د هر چا سره جنگ ته ملا ترړل.

**ـــــ باد ټکورول** :-( اص) و ـــ باد تبل

**ـــــ ټينگول** :-(اص) (۱) باد ايسـارول ، بـاد بنـدول ، بـاد کـوزه تلـو تـه نـۀ پرېښودل (۲) په ځان تکليف تېرول.

**ـــــ ټينگېدل** :-( اص) (۱) باد ايسارېدل ، باد بندېدل ، ۲) بادگير کېدل ، د باد پرېښودو حاجت پيدا کېدل .

**ـــــ جاري کول** :- اص. و ـــ ازادول.

**ـــــ جاري کېدل** :- اص. و ـــ باد ازادېدل

**ـــــ چالو کول** :- اص.و ـــ باد ازادول.

**ـــــ چالو کېدل** :- اص. و ـــــ باد ازادېدل
**ـــــ چلېدل** :- اص. هوا جاري کېدل ، باد را الوتل.
**ـــــ خارجول** :- لُغ. د څۀ پړسېدلي څيز نه باد ايستل.اص: تيز ، پُسکې پرېښول.
**ـــــ خارجېدل** :- لُغ : د څۀ پړسېدلي څيز نه باد وتل ، اص : تيز ، پُسکی راتلل
**ـــــ خطا کېدل** :- اص. په غلطۍ يا بې وسې سره تيز ، پُسکی اچېدل
**ـــــ خورول** :- اص. په خېټه يا د وجود په بل اندام کښې غوټه شوے باد د ټکور يا مالش په ذريعه په وجود کښې خورول.
**ـــــ خورېدل** :- اص. (۱) په خېټه يا د جوړ په بل اندام کښې غوټه شوے باد د ټکور په ذريعه په وجود کښې خورېدل (۲) د څۀ خبرې افواه خورېدل.
**ـــــ خوړل** :- اف. لُغ : هوا خوړل ، هوا خوري کول اص : د جُذام مرض لګېدل
**ـــــ داغل** :- اص. مُلا يا د وجود نورو حصو لکه زنګون او داسې نورو ته د باد درد لرې کولو دپاره د علاج په ډول داغ ورکول.
**ـــــ دصبا**:- اص. د سحر باد ، د سحر وږمه ، خوږه وږمه ، نرے نرے باد ، بادِ نسيم.

لکـــه باد د صبـــا راشي زر ګـــــزر کا
ما خوشحال چې ازمائيلي دے ميثاق ستا
دل تنګي کړم لکه ګل په خندا اور کم
کـه ئې باد د صبـــا بل په خونه اور کا (کاظم خان)

**ـــــ دمول** :- اص. د بادو دم کول ، د بدن د جوړونو دردونو باندې دم اچول
**ـــــ را الوتل** :- لُغ : هوا الوتل ، هوا چلېدل.اص: د زمانې رنګ بدلېدل ، حالت بدلېدل.
**ـــــ راخلاصول** :- لُغ : باد راپرېښول ، د بادو نه ډک څيز نۀ بنده هوا باهر ته راپرېښول ، اص : تيز ، پُسکی اچول ، باد اچول.
**ـــــ راخلاصېدل** :- لُغ : باد ازادېدل ، د بادو نه ډک څيز نه هوا باهر ته راوتل. اص : تيز ، پُسکی خطا کېدل.
**ـــــ ساره** :- (خل) اص. لېونے ، مجنون ، باد وهلے ، ګډې وډې وهونکے.
**ـــــ سمېدل** :- لُغ : د باد رُخ برابرېدل ، اص : قسمت ښۀ کېدل ،
**ـــــ غوټه کېدل** :- لُغ : باد بندېدل. اص : په خېټه کښې هوا يا باد ايسارېدل ، باد نۀ خارجېدل.
**ـــــ کږېدل** :- لُغ : د باد رُخ بدلېدل يا په غلط طرف کېدل ،اص : قسمت خرابېدل ، بده ورځ پېښېدل.
**ـــــ وتل** :- اف. لُغ : هوا خارجېدل.اص (۱) په کار کښې پاتې راتلل د مقابلې نه په شاکېدل ، بې طاقته کېدل ، سستېدل ، (۲) تيز پُوسکی اچول.
**ـــــ ورکول** :- لُغ : څۀ څيز د هوا نه ډکول يا پړسول ، اص (۱) څۀ څيز ته هوا راپرېښول يا د هوا لار راخلاصول. هوا ته برخېره کول (۲) د چا لمسول ، د چا د ضرورت نه زيات تعريف کول (۳) د خپل شان و شوکت يا دولت ښودنه کول.
**ـــــ ورکېدل** :- لُغ : د څۀ څيز د هوا نه ډکېدل يا پړسېدل. اص : (۱) هوا ته برخېره کېدل (۲) چا ته لمسون کېدل د چا د ضرورت نه زيات تعريف کېدل (۳) د خپل شان و شوکت يا دولت ښودنه کېدل.
**ـــــ وهل** :- اف. لُغ : هوا وهل ، هوا ورباندې لګېدل.اص : لېونے کېدل ، بې عقله کېدل.
**ـــــ ويستل** :- اص. و ـــــ باد اوکښل
**تر باد سپکول** :- (اف) لُغ : د هوا نه زيات سپک کېدل. اص : بې عزته کېدل ، شرمېدل ، بې ابه کېدل ، بې وقاره کېدل.
**دبادو په اس سورېدل** :- (خل) مح. بې پروائي کول ، کبر کول ، غرور کول ، کلان کاري کول.

**دباد تر ښي سپکېدل** :- (ظفر) اص. ډېر سپکېدل ، ډېر بې عزته کېدل ، ډېر بې ابه کېدل
**دباد تر وږي سپکېدل** :- (اف) اص. و ـــــ د باد تر ښي سپکېدل.
**د ژوند باد لګېدل** :- (ظفر) اص. د ژوند شپې ورځې تېرېدل ، په ناکامۍ کښې عمر تېرېدل.
**ګرد باد**:- (ګَ + رْ + د + باد) [فا ، اس ، مذ ، وا] بوربُوکی ، بونواله (ګن)
**بادار** :- (با + دا + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : باداران ، (مؤ ، وا ، : باداره ، ج : بادارې) ] اغا ، اقا ، سردار ، مالک ، څښتن ، خاوند
**باداري** :- (با + دا + رِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] اقائي ، سرداري ، حکمراني.
**ـــــ کول** :- (اف) اص. سرداري کول ، حکمراني کول.
**بادام**:- (با + دا + م) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بادامونه] (۱) اف يو قسم کشيده کاري (۲) (اف) د زنانو د سر يو کالے. (۳) يوه خشکه مېوه.

تلخ ګفتار ئې راته خوښ دے
تـــر کشـــمش تـــر بـــادامه (رحمان)

**بادامچه** :- (بادام + چه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بادامچې] و ـــ بادام (۱ ، ۲)
**بادامه** :- (با +دا + مَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بادامې] (۱) تېز باد ، سېلۍ ، زول (۲) لوئي ، غرور ، کبر ، فخر.
**بادامي** :- (با + دا + مِ + يْ) [فا ، ص) د بادام د رنګ ، د بادام د شکل ، بادام رنګې ، بادام شکله.
**باد باټي** :- (باد + با + ټ + يْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] لافې ، لوئې خبرې ، ډوزې ، روړې ، غُرې.
**باد بان** :- (باد + با + ن) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بادبانونه] بادوان ، د جهاز يا کشتۍ هغه پرده چې د هوا دپاره پرې لګېدلې وي او د هغې په زور د کشتۍ يا جهاز رفتار تېزېږي.
**بادبرک** :- (باد + بَ + رَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] د سپين رنګ يو قسم بُوټے.
**باد بېزے** :- (باد + بې + زے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ،وا ، ج: بادبېزي] (۱) بوزے ، بېوزے ، پکے (۲) بادپکے ، بربزے ، پرپرکے ، غورندے. هغه پکے چې چت پورې اوېزاند وي.
**باد بېزي** :- (باد + بې + زي) [پ (راورټي) اس ، مؤ ، وا] فضول او عبث خبرې ، بې فائدې خبرې ، احمقانه خبرې.
**ـــــ کول** :- (راورټي) اص. فضول او عبث خبرې کول ، بې فائدې خبرې کول ، احمقانه خبرې کول.
**باد پکے**:- (باد + پَ + کے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بادپکي] و ـــــ باد بېزے.
**بـــاد پښ** :- (بـــاد + پَ+خ يـــا پَ +ش) [اف : پ (قـــاموس) اس ، مـــذ ، وا] (۱) کړکۍ ، باړۍ (۲) په افغانستان کښې د يوې علاقې نوم
**باد پوکړے** :- (باد + پُو + کَ + ړے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : باد پُوکړي] لُغ : چې هوا په کښې پو کړې شوے يا ډکه شوې وي. اص : ډډ بډ ، ډډ ، پړسېدلے ، ډډو ، ټنډ.
**باد پېزۍ** :- (باد + پې + زي) [اف ، پ (قاموس) ص ، مؤ ، وا] عبث او خوشې خبرې ، بېهودګي ، لغويت ، ټوقې ټکې.
**ـــــ کول** :- (اف) اص. عبث او خوشې خبرې کول ، بېهودګي کول ، ټوقې ، ټکې کول.
**باد پېما** :- (باد + پې + ما) [فا ، اس ، مذ] (۱) د باد د رُخ معلومولو اله ، بيرومېټر ، (۲) تېز رفتاره (خل) لکه : " دا اسپه باد پېما ده"

**بـادجړی**:-(بـاد + جَ + ړ + ی) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ] (۱) دغـرهٔ د مخې یخه واؤریزه هوا (۲) (راورټي) تېز باران ، چې باد په کښې وي -زول ، جکړ (ګن)

**باد ښاره** :-(بـاد + ښـا + رَه) [پ (خـل اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج: بادښاري] ګډې وډې خبـرې کـوونکے ، بـې مغـزه کـم دماغـه ، لېـونے ، اوتـر ، باسارے ، باسار

**بـاد خـور** :-(بـاد + خُـو + رْ) [اف : پـه (قـاموس) اس ، مـذ ،وا] فـا: سُرخ پشتک ، (۱)یو مارغهٔ دے چې په هوا کښې پورتـه اوخېژي او ولاړ وي-باد خورک-(۲) (ظفر) د اسونو یو مرض چې ګېډه ئې اوپړسېږي (۳) (ظفر) هغه سړے چې تود سوړ شوے وي -زکام وهلے (۴) د بـاد یو بیماري چې کُولمه ئې بهر ته راوزوي او اوپړسېږي -فتق ، هرنیا-

**باد خورک** :-(باد + خو + رَ + کْ) [فا ، اس ، مذ ، وا] باد خور

لکـه باز په لوړے لوړے ښکـار زما نظر وي

نـهٔ چې ګرځي ګونګټ نیسي باد خورک یم (خوشحال)

**باد خوري** :-(بـاد + خو + رِيْ) [پ (راورټي) اس ، مؤ ، وا ، ج: بـادخورۍ] د اسونو یوه بیماري ، په هغه کښې اس خوراک پرېږدي او مانده شي-

**بادر** :-(بـا+ دَ + رْ) [فـا ، بهـاد ر ، اس ، مذ ، وا ، ج: بـادران ، (مو ، وا: بـادره ، ج: بادرې) ] زړهٔ ور ، مړنے ، تُورزن ، توریالے ، جنګیالے ، مضبوط-

**بادر** :-(با + د + ر) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] د ګرمۍ د موسم یو میاشت (۱۵ دلو نه تر ۱۵ حوت پورې) بـادرو ، د اګست میاشت ، د هندي کال پنځمه میاشت-

**بادرب** :-(باد + رَ + بْ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ] و ـ بادجړي

**بادرنـګ** :-(بـا + د + رَ + نْ + ګ) [فـا ، دس ، مـذ ، وا ، ج: بادرنګـان (اف] یـوه ترکاري ، د ترې یو قسم-

**بادرو** :-(با+ د + رو) [پ ، ه : بهادون ، اس ، مذ ] و ـــ بادر

**بادرو لېونے** :-(اص) ډېر زیات لېونے ، سخت لېونے-

**بادرو** :-(باد + رُو) [فا ، پ (راورټي) اس ، مذ ، وا ، ج: بادرونـه] هغـه موری چې په دیوال کښې د هوا او رڼا دپاره پرې ایښې شوې وي-روشندان ، باد کښ

**بادري** :-(بـا+ دْ + رِيْ) [فـا ، بهـادري ، اس ، مـؤ ] زړهٔ ور تـوب ، مړنتـوب ، تُوره-

**ـــــ کول** :-(مص مت) زړهٔ ورتوب کول ، مړانه کول ، توره کول

**باد سر** :-(باد + َس+ رْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ] لېونے ، باد وهلے

چې د خیال ښکالو دي اورمه اوتر یم

خلــق به وائي لېونے یمه باد ســر یم (ایاز داؤدزیٔ)

**بادشاه** :-(با+ د + شا + ه) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج: بادشاهان] (۱)د یو ملک والي یا واکدار ، باچا ،

که بادشاه دے اخر خاورو لره درومي

څهٔ عــزت دے څهٔ حـرمت په دا دنیا (رحمان)

بادشاهانو که قصرونه کړل اباد

ماد عشق عمـــارتونه کړل اباد (رحمان)

(۲) اص : بې پروا ، بې فکره ، بې غمـه (۳) اص : سخي ، ستر زړے ، د لوئې سینې خاوند-

**بادشاهي** :-(با + د + شا + هي) [فا ، اس، مؤ،وا] و ـــ باچائي

**باد شور** :-(باد + شو + رْ) [فا، اس ، مر ، مذ ، وا] لُغ: تریو یا مالګین باد ، اص : نائټروجن-

**باد فرنګ** :-(باد + ف + رَ + نْ + ګْ) [فا، اس ، مذ ، وا] و ـ اتشک

**باد کښ** :-(باد + کَ + ښ + یا کَ + ش) [پ ، اس ،مذ] و ـ بادرَو

**باد ګوله** :-(باد + ګو + له) [پ (ظفر) اس ، مؤ ، وا] یوه بیماري چې په کُولمو کښې باد اوښلي او درد پیدا شي-قولنج

**باد وان**:-(باد +وا + ن) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بادوانونه] و ـ بادبان

**بادور** :-(با+ دُو +رْ) [اف : پ (قاموس) فا : بهادر ، اس ، مذ] باتور ، بادر

**بادوري** :-(بـا + دُو+ رِ + يْ) [اف : پ (قـاموس) فـا : بهـادري ، اس ، مـؤ ] و ـــ بادري-

**بادورۍ** :-(بـا + دُو + ر +ۍ) [اف ، پ (قـاموس) ص ، مؤ] د بـادرۍ نخښـه ، د مړنتوب نشان-

**بـادوړے** :-(بـاد + وْ + ړے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ] یـو سپـین سپـک شان بُوټے چې باد ئې الوزوي-

**بادوک** :-(با+ دُو + ک) [اف : پ (قاموس) ص ، مـذ ، وا (مؤ ، وا: بادوکه ، ج : بادوکې) ] بادي ، هغه څیز چې په خېټه کښې باد پیدا کوي-

**بادوکے** :-(با+ دُو + کے) [ا : پ (قاموس) ص] بادګیر ، د بادو په مرض اختـه ، د بادو مریض

**بادوکے** :-(با+ دُو + کے) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] (۱) نرمـه هـوا ، نـرے باد ، نرۍ اېشمه ، معمولي معمولي هوا-(۲) کم عقل ، ناپوهـه ، بـودلے ، ساده ، د خلکو ګوډاګے ، د نورو په وېنا غولېدونکے یا تیندک خوړونکے-

**بادول**:-(با+دَ +وَ +لْ) [پ ، مص ،مت] (۱) د غلې په باد صفا کـول ، غلـه الوزول (۲) فضول خرچي کـول ، لُوچه تـوب کـول ، (۳) څهٔ خبـرې تـه هوا ورکول-(د حال نه سېوا نورې ټولې صیغې د بـاد کـول نـه جـوړې شوې دي)

**بادونګ** :-(با+ دْ + وَ + نْ +ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] بادونه-

**بادونه** :-(با+ دْ + وَ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص) و ـــ بادونګ

**بادوُونکے** :-(با+ دَ +وو + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) ، اس ، فـا ع مذ ، وا ، ج : بـادوُونکي] (۱) د غلـې پـه بـاد صـفا کـوونکے ، غلـه الـوزوُونکے ، (۲) فضول خرچي کوُونکے ، لوچه تـوب کوُونکے (۳) څهٔ خبرې تـه هوا ورکوُونکے-

**بـاد وهلے** :-(بـاد + وَ + هَ + لَـے) [پ (ب ،خ) اس ص ، مـذ ، وا ، ج : بـادولي] لېونے ، پاګل ، بې مغزه ، اوتر ، بادښاره-

**باده** :-(با +ده) [فا ، اس ، مؤ] شراب ، د څښلو یو نشه کوُونکے څیز

**باد هوا** :-(باد + هَـ + وا) [پ (ظفر) اس ، مؤ ] باړیوه ، ګوډۍ-

**بـادي** :-(بـا + دِ + ي) [اف : پ (قـاموس) ص] (۱) د بـادو پـه مـرض اختـه یـا بیمار (۲) د باد په ذریعه د غنمو د بوس ، پروړې یا پوړ نـه د جدا کولو کار ، د وانې الوزولو کار (۳) هغه څیـز چې په خوړلو ئې په خېټـه کښـې باد پیدا کېږي-په کولمو کښې ګېس پیدا کوُونکے څیـز-(۴) بـادي اوبۀ ، مهاري اوبۀ ، تېز اوبۀ (۵)د بادو په اس سور ، کبرجن ، مغروره-

**ـــــ کول** :-(اف) مص تر (۱) د باد په ذریعه غَله د بوسو نـه جدا کول وانې الوزول (۲) اوبۀ تېزول ، اوبۀ ګړندے کول-

**ـــــ کېدل** :-(اف) مص لا-(۱) د غنمو یا د اوربشو فصـل چې بـاد اووهي او تـش لاړ شي -د فصـل بـاد وهـل (۲) د باد په ذریعـه غلـه د بوسو نـه جدا کېدل (۳) د بادو په مرض اخته کېدل یا پرېوتل-

**بادیان** :-(با+ د + یا + نْ) [فا ، اس ، مذ ] کاږهٔ ، سونف ، کاږهٔ وېلني ، د یو بوټي تخم چې د خېټې د درد او قبض دپاره دارو ګڼلے شي-

**بـادیمن** :-(بــا+ دِيْ+ مَ+ نْ) [پ (ظفـر) اس ، ص ، مـذ وا] پړسـېدلے ، مجـازاً مغروره

**باړاسکه** :-(با + ړا + س + کَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] د دریـاب لویـه چپه چې بانډاسکي هم ورته وائي-

**باډاسکي وهل** :-(اف) مص تر ـ ځپې یا چپې وهل ، د دریاب بتونه وهل ، اوبهٔ اوښان اوښان کېدل ، سېلاب راتلل ـ

**باډاسکي** :-(بـا + ډا + س + کـيْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، جمع ] باډاسـکي ، بازیګري ، په شا بازیګرۍ اړول ـ

**باډر** :-(با+ ډَ + رْ) [پ (عا) انګ ، بارډر ، اس ، مذ ، وا] (۱) سرحدي پولیس ، (۲) د دوو ملکونو تر منځه برید یا سرحد ، (۳) د یو څیز کناره یا لمن ـ

**باډسکي** :-(با+ډَ +سْ+کيْ) [ اف : پ (قاموس) اس،جمع ] و ـ باډاسکي

**باډګول**:-( با+ډ+ګو+ل ) [ اف : پ (قاموس) اس،مذ،وا ، ج : باډګولونه ] مضبوط پړے یا رسۍ ، د اس تېرسرے یا ترسېرے

**باډنګ** :-(بـا + ډ + نْ + ګ ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ] (۱) بادرنګ (۲) کم عقل، بودلے ، احمق ، بې وقوف ، ناپوهه ـ

**بـاډو** :-(بـا+ ډُوْ ) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مـذ ] (۱) بـې همتـه سست،بې مغز، بې ښې توښې ، نهٔ د چا د ښو نهٔ د بدو (۲) (خل) ډوزې ویشتونکے ، خپل ځان په لویو پایو کښې حسابوونکے ـ د اوچې خان ، دروغجن ـ

**باډول** :-( بـا+ ډو + لْ ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ، وا] چـاجوش ، چائې جوش ، کېتلے ـ

**بـاډي** :-(بـا+ ډِي) [پ (ع) انګ Body، اس ، مو ] وجود ، جسم، قـدقامت ، بدن ، ساخت ،شکل،صورت ـ

**ـــــ جوړول** :-(اص) وجود جوړول ، جسم د ورزش په ذریعه مضبوطول ، ځان تکړه کول ، د وجود غوښه مضبوطول ـ

**باډي ګارډ** :-(باډي + ګا + ر + ډْ ) [انګ ، اس ، مذ] د یو حـاکم حفـاظتي دسته ، د بادشاه خاص فوځ ، د دارالحکومت محافظان سپاهیان ـ

**بـاډې** :-(بـا + ډې) [پ (خـل) اس ، مـؤ ، ج ] لـوئې خبـرې ، ډوزې ، بـې ځایـه خبرې ، غلط تعریفونه ، بې ځایه ستائینه ـ

**ـــــ کول** :-(خل) اص ـ ډوزې ویشتل ، خپل ځان غټ حسابول ، د اوچې خان کېدل ، دروغ وئیل ـ

**بار** :-( با + ر ) [ فا ، پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بارونه ] (۱) ورے ، په سنډا یا غـویئ یـا اوښ بانـدې تـړلے پېټے ، (۲) د مېوه دارې اونې پـه ګلونـو راتلل (۳) وار ، پاره

**ـــــ اخستل** :-(اص) ځان بانـدې درانهٔ اخستـل ، ځـان ذمـه وار کـول ، ذمـه اخستل، چا سره تکلیف شریکول ، د چا تکلیف کمول ـ

بار محیط دریزه سنګ په سر وانهٔ خست

نهٔ ســخت رویـــه سره وایه انسان څهٔ کرم (کاظم خان)

**ـــــ تړل** :-(اص) په ځاروي بانـدې اچولو دپاره ورے تیـارول ، د کـوچ تیـاري کول، یو مقام نه تګ کول ، کډه کول ـ

**ـــــ راوړل** :-(ظفر) اس (۱) مېوه نېول (۲) خپل کوښښ کښې کامیاب کېدل ـ

**ـــــ ږدل** :-(اص) په چا باندې پېټے غورځول ، په چا ذمه واري اچول

د افتاب په کمند نهٔ خېژم اسمان ته

نــه ږدم بار لکه شبنم په دوش د ګلو (کاظم خان)

**ـــــ نیول** :-(اص) مېوه نیول ، حمل کېدل ـ

**ـــــ کښې کوږ لړګے** :-(اص) نارامـه ، سرکشـه ، د خپـل سر مـخ خاونـد سمه خبره نهٔ منونکے ، ضدي شېطان ،

رقیب نیت د ورستے ډلې رانه کوږ کړه

پـــه یوهٔ کارهٔ لــړګـې شي واړه پار کج (علیخان)

**د چا بار لاندې تلل**:-(مح) د چامنت بار کېدل ، د چا نیکۍ نهٔ هېرول

**بـاران** :-(بـا +را+ نْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بارانونـه ] د وریځـو نـه اوبـهٔ راورېدل ، د څاڅکو په شکل کښې ـ

دا سرخي او سفېدي د ستا د مخ ده

کـــه زما په مـخ باران دې د خوتاب (رحمان)

**ـــــ په شېبو شېبو** :-(اص) ډېر سخت بـاران ، طوفـان بـاران ، زبـان بـاران ، په کاسو باران ، ګڼ باران ـ

**ـــــ ورول**:-(اص) د اسمان نه اوبهٔ راتویول ، چې د الله پاک کار دے

**ـــــ ورېدل** :-(اص) باران شروع کېدل ، د وریځې نه اوبهٔ راتوئیدل

**په کاسو باران** :-(اص) و ـــــ باران په شېبو شېبو ـ

**د سرو وینو باران**:-(اص) ډېرې زیاتې وینې ، بهېدل ، ډېره زیاته ، خونریزي کېدل ـ

د سرو وینو په باران یې سېل روان شي

چې وقتـــل تــــه ابري تــوره تر ملا کا (کاظم خان)

**باران پسې پټے ګرځول** :-(مح ) خپل مطلب کول ، هر ځـاے تـه ځان رسول ، په څهٔ نا څهٔ شکل کښې خپل مطلب حاصلول ، خودغرضـه کېدل ، حماقت کول، بې وقوفي کول ـ

**باران بو** :-(باران + بـو ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ] چې بـاران نـهٔ کېـږي ـ نـو هلکان په جمع وګرځي او د کورونـو نـه اوړهٔ وغېـره غونډ کـړي او خېـرات وکړي چې خداے پاک باران وکړي ـ

**باران کوټ** :-( باران+کو+ټ ) [ پ ،اس ، مذ ،وا] برساتـۍ ـ د بـاران نـه د بـچ کېدو دپاره اوږد کوټ ، د موم جامې نه جوړ شـوے کـوټ چـې بـاران پرې اثر نشي کولے ـ

**بارانو** :-( با+ را + نو ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بـارانـوے] و ـــــ باران بو

**بـاراني** :-(بـا+را + نِ + يْ) [پ ، ص ، مـؤ ] هغـه مزکـه چـې صـرف پـه بـاران اوبېږي او یو فصل کوي ، للمه مزکه ـ

**بار بار** :-(بار + بار ) [ فا ، ص ] بیا بیا ، یو خبره ډېر ځل کول ، د یـو وېنا تکرار ، یو څیز هر وخت یادول ـ

**بار بردار** :-(بار + بَ+ رْ+ دا + رْ) [فا ، س ، ص ، مذ ، وا ، ج (مؤ، وا: باربرداره ، ج : باربرداري) ] بارورُونکے ځناور ، لکه سنډا، غویئے ، اوښ ، خر وغېره ـ

**بـار بـردار سـړے** :-(اص) سـخي سـړے ، فیـاض سـړے ، روغ نیـتے ، د دسترخوان خاوند ، خوش خلقه اوښک بنیادم ـ

**بار برداره ښځه** :-(اص) حامله ښځه ، هغه ښځه چې امېدواره وي ـ

**بار برداره ونه** :-(اص) هغه اونه چې ډېره مېوه لري ـ ښهٔ ګڼه او د مېوې ډکه ونه ـ

**بـار بـرداري** :-(بـار + ب + ر+ دا + رِيْ) [فـا ، اس ، مـؤ ] (۱) د سـامان اوړو راوړو ذریعه ، د موټرو یا د ځناور په ذریعه مال یو ځاے نه بـل ځاے تـه وړل (۲) سامان یا پېټے اوچتول ، بار کشي ـ

**بار بېلیز** :-(بار + بې + لِي + زْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] هغه ګډ یا وز چې خاوند ئې نهٔ وي معلوم او د ګډو په کنډک کښې شامل شي ـ

**بـار بېلیـزه** :-(بـار+بې+لِيْ + زَه) [اف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ] لاوارثـه او اواره ښځه ، خوشکۍ ښځه ، هغه ښځه چې خاوند ئې نه وي ـ

**بارتنګ** :-(بار + تَ+ نْ + ګ) [پ ، اس ،مذ] د یو بوټي تخم چې ماشومانو لـه ئې ګوټۍ کښې یشوي ـ نس خوږي دپاره هم خوړے شي ـ

**بـار چـوي** :-(بـار + چُـو + يْ) [اف : پ (قـاموس) اس ،مـذ] د ژرنـدې څـرخ ګرځولو دپاره په اوبو کښې ښخ مضبوط لرګے ـ

**بـــار څـــاک** :-(بـــار + څـــا + ک) [اف : پ (قـاموس) اس ص ، مــذ ،وا ، ج : بارڅاکونه ] شلېدلے قمیص ، شلېدلې لمن

**بارخو** :-(با+ ر + خُوْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بارخوګان] اننګے ، څېره ، رُخسار

په بارخو ئې دې د صبا سرخي غازه ده

که غرورو دې د ښائست کړې لمبه ده (حمزه)

**باردار** :-(بار+دا+رْ) [فا ، اس ، فا ع ، مذ ، وا، ج : برداران ، (مؤ، وا : بارداره ، ج : بارداري) ] و ـــ بادار.

**بارداره** :- (بار+دا+رَه) [پ ، اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : بارداري] (۱) امېدواره ښځه (۲) د مېوې ډکه ونه.

په بارداره ونه تل کاڼي ورېـږي
ورته ګوره چې بارداره ونه څۀ کا (خوشحال)

(۳) فائده من او فياض سړے (۴) بار کړے څناور.

**بارداري** :- (بار + دا + رِيْ) [پ (عا) اس ، مؤ] (۱) د اوړو راوړو سامان (۲) د سامان د اوړو ذريعه.

**بارسوخ** :-(با+ر+سُو+خْ) [فا ، ص ، مذ] مشهور سړے ، په وطن کښې ياد سړے ، هر چا ته رسېدونکے سړے ، د هر چا په نظر کښې عزتمن سړے.

**بارک** :-(با+رَ+کْ) [پ (عا) انګ ،Barraok اس ، مذ ، وا ، ج : بارکونه] د فوځيانو د استوګنې ځاے ، سرکاري ابادياني.

**بار** :-(با +رَ+کْ) [پ ، اس ، مذ] د خټکو د قبيلې يوه څانګه.

**بارک زی** :-(بارک + ز +ی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د دُراني قبيلې يوه لويه تپه

**بارکښ** :-(بار +کَ+ شْ یا کَ+خ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بارکښان ، (مؤ ، وا ، بارکښه ، ج : بارکښې) ] (۱) بار اوړونکے ، پېټمار ـ اص (۲) محنتي ، محنت کوونکے ، (۳) د لوئې سينې خاوند ، صابره (۴) بار اوچتوونکے څناور، باربردار.

**بارکښي** :-(بار+کْ+شِيْ+یا خِيْ) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] و ـــ بار برداري.

**بارکه** :-(با+رْ+کَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] يو قسم بوټے دے چې د لاس پښو د خارښت دپاره د دوائي په ډول استعمالېږي.

**بارګاه** :-(بار+ګا+ه) [فا ، اس، مذ ، وا، ج : بارګاهونه] دربار ، محل ، ستانه، يو پاک ځاے.

شريعت ئې بارګاه کښې طريقت يې په نګاه کښې (کاظم خان)

**بارنده** :-(با+رِ+نْ+دَه) [فا ، اس ، ص، مذ] ورېدونکے ـ د باران په شان اوبۀ ورېدونکے.

تور لېمۀ ناصحاب کړه بارنده يې د سېلاب کړه (کاظم خان)

**ـــ سترګې** :-(اص) اوښکې توېوونکې سترګې ،غمجنې سترګې

**باروب** :-(با+رو+بْ) [پ(عا) فا : بارُعب ، ص ، مذ] دُرُوند عزتمن سړے ، برشي سړے ، ښائسته او ښۀ څوان سړے ، معزز سړے.

**بارود** :-(با+رُو+دْ) [فا ، اس ، مذ] اور اخستونکي ماده چې په ټوپکونو او کارتوسونو کښې استعمالېږي ـ د اتشي وسلې خوراک.

**ګوله بارود** :-(اص) وسله ، اتشينه وسله ، لکه کارتوس ، ټوپک بمونه وغېره.

**بارول** :-(با+رَ+وْ+ل) [اف : پ (قاموس) مص ، مت] بار کول ، ورے اچول ، لېږدل ، په څاروي سامان اچول ،پېټے اچول.

**بارونګ** :-(با+رْ+وَ+نْ+ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] بارونه ، لېږدنه ، ورے اچونه.

**بارونه** :-(با+رَ+وْ+نه) [اف : پ (قاموس) حمص) و ـــ بارونګ

**باروُونکے** :-(با+رَ+وُو+نْ+کَے) [اف: پ (قاموس) اس، فا ع ،مذ ، وا ، ج : باروُونکي] په باربردار څناور باندې بار اچوونکے لېږدونکے ، ورے اچوونکے.

**باره** :-(با+رَه) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بارې) (۱) لوے بند (۲) د کاڼو ديوال ، په کوټه باندې د کاڼو چار ديواري چې مورچې پکښې جوړې شوې وي.

ډال د ډاډے چا په سر باندې کښې نۀ ښود
که صورت مې د غم غشو ته باره کـه (عليخان)

(۳) د قلا ديوال (۴) په دېوال باندې د کاڼو يا خښتو پوره رده.

**ـــ تېرول** :-(ظفر) اص ـ ديوال دپاسه د کاڼو يا خښتو رده اېښودل د ردې دپاسه بله رده يو پُور تېرول.

**باره سنګا** :-(با+رَه+س+نْ+ګا) [ه ، اس ، مؤ ، وا] د اوسې يو قسم چې په ښکرونو کښې ډېر ښاخونه لري.

**باره مولا** :-(با+رَه +مُوْ+لاَ) [اس ، معرفه] د کشمير يوه ښاريه

**باري** :-(با+رِ+يْ) [ع ، اس ، فا ع، مذ ، ا] پېدا کوونکے ، خالق ، جوړوونکے د الله تعالیٰ دپاره دا ټکے استعمالېږي.

**باري تعالیٰ** :-(باري+تَ+عا+لا) [ع ، اس ، ص ، مذ ، وا] ډېر لوے خالق ، خالقِ مطلق.

**باري** :-(با+رِ+يْ) [اف : پ (قاموس) ص] (۱) مېوه داره اونه (۲) هغه څناور چې په بار اخستو اموخته شوے وي ـ (۳) د تکيه کلام په طور استعمالېږي ـ لکه نو ، بارے وغېره.

**باري** :-(با+ر+يْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، ج : باريان] يو قسم ښکاري مارغۀ چې توري سترګې ئې وي.

**ـــ کول** :-(اص) يو څناور لکه سنډا ، غويئے وغېره په بار اخستو اموخته کول، پوټي کول (ګن)

**بارۍ** :-(با+رَ+ی) [پ ، اس ، مؤ ، وا] د رڼا او د هوا دپاره په دېوال کښې کړکۍ.

**بارې** :-(با+رې) [پ] لېکن ، ولې ، خبره دا چې ، لنډه دا چې.

هر څوک خپله خوشنودي له خدايه غواړي
بـــــارې نۀ شـــي د غـــم کار په زر وزور (رحمان)

**بارې** :-(با+رې) [پ ، تکيه کلام] هېڅ معنې نۀ لري ، فقط تاکيداً وئيلې شي.

بارې ورځ ورځنې لاړه
وخت پرې راغې مازيګر (رحمان)

**باریاب** :-( با+رْ+يا+بْ) [ فا ، پ (روسي قاموس) ص ،مذ ، (مؤ، وا ، باريابه ، ج : باريابې) ] کامياب ، په يو دربار کښې د حاکم د ليدو سعادت حاصلوونکے.

**باریابېدل** :-(با+ر+يا+بې+دَ+لْ) [پ (روسي قاموس) مص] برياب کېدل ، په يو دربار کښې د حاکم د ليدو سعادت حاصلول ، د بادشاه د حضور سعادت حاصلول ، کامياب کېدل

**بارېدل** :-(با+رې+د+ل) [اف : پ (قاموس) مص لا] (۱) بار کېدل لېږدېدل ، د مال اسباب وري په څارووِ بارېدل (۲) د سفر تياري کېدل ، کوچ کېدل ، کډه کېدل.

**بارېدنګ** :-( با+رې+د+نْ+ګ) [اف: پ (قاموس) حمص] بارېدنه، کوچ ، کډه.

**بارېدنه** :-(با+رې+د+نه) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ بارېدنګ

**بارېدونکے** :-(با+رې دُوْ+نْ+کے) [اف: پ (قاموس) مف ، مذ، وا، ج : بارېدونکي] (۱) بار اخستونکے،لېږدېدونکے (۲) کوچ کوونکے ، کډه کوونکے

**باریسال** :-(با+رِيْ+سا+لْ) [اس معرفه] په نور ختيځ پاکستان کښې د يو ښار نوم

**باریک** :-(با+رِيْ+کْ) [فا ، ص ، مذ(مؤ ، وا : باريکه ، ج : باريکې) ] نرے ، مېده ، نازک ، کمزورے.

**ــــ كول** :-( مص تر ) نرے كول ، مېده كول.

**باريک بين** :-( باريک + بيْ + نْ ) [ فا ، اس ،ص ، مذ ،وا] ځيرک ، هوښيار او پوهه سړے ، په ذره ذره خبره پوهېدونکے سړے .حقيقت شناس ، تيز نظرے ، ذهين.

**باريكي** :-( با+ ري + كيْ ) [ فا ، ب ،ص ،مؤ ] د يو خبرې پټ مفهوم، پټ مطلب ، پټه معنٰى.

**باريكي** :-( با + ري + كَ + ى ) [ فا ، ب ، ص ، مؤ] نرے والے ، نزاكت ، نرمي ، مشكل ، ګران

**بار** :-( با+ ړْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : باړونه ] (۱) د ټوټ پرله پسې ډزې (۲) شپول ، د پټې يا د سرک غاړې ته غنې يا اغزن تار.برېد معلومولو دپاره د اوسپنې اغزن تار يا لګېدلې غنې.

**ــــ چلول** :-( اف ) مص تر .باړ كول ، په ټوپک پرله پسې ډزې كول.

**ــــ چلېدل**:-( اف ) مص تر ) باړ كېدل، د ټوپک پرله پسې ډزې كېدل.

**ــــ كول** :-( اف ) مص تر .په ټوپک پرله پسې ډزې كول.

**ــــ كېدل** :-( اف) مص تر .د ټوپک پرله پسې ډزې كېدل.

**باړ بوزک** :-( با+ ړْ + بُو + زَ + کْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : باړبوزګونه ] يو خود رو سبزه ده چې ماشومان ئې اومه خوري.

**باړخه** :-( با+ ړ + خه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : باړخوګان] وــــ بارخو.

**باړخو** :-( با+ ړ + خُوْ ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ] وــــ بارخو

**باړک** :-( با + ړْ+ ک ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ] يوه مشهوره اونه ده چې د قندهار په شګلينه علاقه كښې ډېره زياته پېدا كېږي .كوئله ترې نه جوړېږي او د مشک وغېره د رنګ كولو په كار راځي.

**باړل** :-( با+ ړ +لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص ، غېر مستعمل ، قديم] نفع يا فائده رسول

**باړواک** :-( با+ړ+وا+ک ) [ اف :پ (قاموس ) اس ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا : باړواكه، ج : باړواكې ] غافل، بې پروا ، بې فكره ، اودهٔ .

**باړه** :-( با+ ړه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] وــــ باره

**باړه** :-( با + ړَ + ه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا] (۱) د پېښور په علاقه كښې د يو خوړ نامه چې د تيراه د چشمو اوبهٔ په كښې بهېږي.او باراني اوبهٔ په كښې د سېلاب په شكل كښې راځي .كومې چې خليل مهمند د فصلونو دپاره استعمالوي .دا دواړه تپې تر اوسه هم په باړه ابادې وي .(۲) (ګن ) مزدوري (۳) (خل) باړے،ونډه ، بوس ، چنه ، بوره وغېره .چې لنګې غوا مېښې ته د لوشلو په وخت كښې وركوي چې په ارام اودرېږي.

**ــــ تړل** :-( اص ) د باړې نه لښتو ته اوبهٔ راخېژول.

باړه وتړه هله كښت زراعــت كړه
تقوي دار شه خله طمع د جنت كړه (رحمان)

**ــــ اخستل** :-( اف ) اص (۱) مزدوري اخستل ، كرايه اخستل ، (۲) د يو ناكاره او بد اخلاقې د كار معاوضه يا اُجرت اخستل.

**ــــ خوړل** :-( اف ) اص.وــــ باړه اخستل

**ــــ كول** :-( اف ) اص.په كرايه اخستل ، په باړه اخستل.

**ــــ كېدل** :-( اف ) اص.په اُجرت يا كرايې تلل.

**ــــ وركول** :-( اف ) اص . اُجرت يا كرايه وركول (ظفر) بډې يا رشوت وركول.

**په باړه اخستل** :-( اف ) اص.وــــ باړه كول.

**په باړه وركول** :-( اف ) اص .په اُجرت يا كرايه وركول، په باړه چلول په معاوضه وركول.

**باړه ګلى** :-( باړه + ګ + لَ + ى ) [ اس ، معرفه ، مؤ ] د هزارې په ضلع كښې يو يخ مقام ، د اوړې په موسم كښې ځينې خلق باړه ګلى ته ګرمى تېرولو دپاره ځي.

**باړے** :-( با+ ړَے ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج : باړې ] (۱) هغه خوراک چې لنګې غوا ،مېښې ته ئې د لوشلو په وخت وركوي چې په ارام اودرېږي .باړه ، باړے ، (۲) اُجرت ، مزدوري ، مزد (۳) مجازاً رشوت ، بډې.

**باړې** :-( با+ ړې ) [ پ (خل) اس ] وــــ باړے.

**باړى** :-( با+ ړ + ى ) [ اف : پ (قاموس) اس مؤ ] (۱) د كلي په خوا كښې د مزروعه زمكې ټوټه ، د كلي چارچاپېره زمكه (۲) (خل) كلي يا كور سره جخته د زمكې ټوټه چې پكښې اونې يا ګلونه كرلې شوي وي (۳) جمعيت ، ډله.

**باړي خور** :-( با+ ړي + خو + رْ ) [ پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا، (مؤ ، وا، باړي خور ج : باړي خوري) ] (۱) د لور خور په سر باندې د چا نه مال خوړونكے (۲) رشوتي ، بډې خور ، بډې خوړونكے.

**باړيمار** :-( با+ ړي + ما + ر ) [ پ (خل) اس ، فا ع ، مذ ،وا(مؤ ، وا: باړيماره ، ج : باړيمارې ) ] وــــ باړے خور.

**باړينچغ** :-( با+ ړي + نْ + چَ + غْ ) [ پ (ظفر) اس ، مذ ، وا، ج : باړيچغونه ] برين چغ ، بانيچغ ، بنډې چغ ، د ماشومانو او جينكو په اخترونو كښې په دائره كښې د ځنګلو يا چورلېدلو دپاره د لرګي نه جوړه ځانګو شان.

**باز** :-( با + زْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بازونه ] يو ښكاري مارغهٔ

يا زهٔ باز ؤم يا شاخين ؤ شاجئهان ته
و اورنګ وته قارګه يا مشګيرک يم (خوشحال)

**باز راتلل** :-( اص ) د يو خبرې نه منع كېدل ، يو ضد پرېښودل.

**بازار** :-( با+ زا + ر ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بازرونه ] هغه ځاے چېرته چې د ژوند د ضرورت سامان خرڅولو دپاره دكانونه وي.د پلورلو پيرودلو ځاے

واړه غم دے كه ئې پېرې كه ئې پلورې
نــور څهٔ نشـــته په بازار د دې دنيا (رحمان)

**ــــ پرېوتل** :-( ظفر) اص.نرخ پرېوتل ، يو څيز د ډېر والي له كبله ارزانېدل.

**ــــ تودېدل** :-( اص ) بازار ګرمېدل.د يو شي طلب زياتېدل ، په يو څيز نرخ راتلل، د يو شي زيات رواج كېدل ، بازار ختل.

**ــــ خورول** :-( ظفر ) اص.(۱) بازار غوړول ، څيزونه مېدان ته رايستل ، (۲) څيزونه ګډ وډ او بې ځايه بې ترتيبه كښېښول

**ــــ خوروړل**:-( ظفر ) اص.بازارتس نس كول،ختمول ، بې رونقه كول.

زما يار په هر محفل باندې چې راشي
پــــه ښايست د ښايستؤ بازار خور كا (خوشحال)

**ــــ سړېدل** :-( اف ) اص .(۱) بازار يخېدل ، (۲) طلب كمېدل ، د يو څيز نرخ پرېوتل ، د يو شي رواج كمېدل ، څيز بې قدره كېدل ، (۳) د ځوانى او ښائست وار تېرېدل.

**ــــ ګرمول** :-( اص ) بازار تودول ، رنګا رنګ څيزونه باهر ته رايستل ، رونق جوړول

مګر پُرئې درست بآزار دے په لعلونو
چې ئې ګـــرم هره ورځ په خـون بها كا (كاظم خان)

**ــــ ګرمېدل** :-( اص) وــــ بازار تودېدل.

**ــــ لګول** :-( اص) هغه څيز چې په طريقه طريقه ايښودل ، قسم قسم څيزونه مېدان ته رايستل ، رنګ په رنګ سامان رابهر كول

**ــــ يخېدل** :-( اص) وــــ بازار سړېدل.

**بازارګے** :-(بازار+ګے) [پ، اس تصغیر، مذ، وا، ج: بازارګي] (۱) وړوکے بازار، د وړوکوالي دپاره وئیلے شي.-(۲) په تیراه، صوابۍ او بُنیر کښې د کلو نومونه.

**بازاړے** :-(با+زا+ړے) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: بازاریان، (مؤ، وا: بازارۍ، ج: بازاریانې] (۱) ښارے، د ښار اوسېدونکے.

(۲) معمولي سړے.

**بازاري** :-(با+زا+ري) [پ، ص] (۱) د بازار شے یا څیز، (۲) اص کمزورے، کچه، ناپائیداره، نمائشي (۳) بې اتباره سړے، معمولي سړے، ټګ سړے، د هر چا یار، هرجائي (۴) مؤ: فاحشه ښځه.

**ـــــ نرخ** :-(اص) د منډۍ نرخ، روزانه نرخ، د بازار قیمت، عام نرخ

**ـــــ سپے** :- لُغ: هغه سپے چې مالک ئې نۀ وي او په بازار کښې خوشے ګرځي.-د قصابانو سپے، کُوته.-(اص) سپک، بې اتباره ټګ سړے، غل سړے، کاواک، چې خولۀ ئې خپل واک کښې نۀ وي.

**باز پرس** :-(باز+پُ+رْ+سْ) [فا، پ، اس، مذ] تپوس، جواب طلبي، بیان اخستل، د یوې معاملې په حقله تپوس کول.

**باز ګوټے** :-(باز+ګو+ټے) [پ، اس، تصغیر، مذ، وا، ج: بازګوټي] وړوکے باز

**بازل** :-(با+زْ+لْ) [اف: پ (قاموس) مص] (۱) بائلل، خرڅ کول، ختمول، بې ځایه لګول (۲) په جوارۍ بائلل، داؤ کول، په داؤ کښېښودل.

**بازلے** :-(با+زَ+لے) [اف: پ (قاموس) مف، مذ، و، ج: بازلي، (مؤ: بازلې] بائللې، بائلودې، بې ځایه خرڅ کړې شوې.

**بازنه** :-(با+ز+نه) [حمص] بې ځایه مال دولت تباه کونه، د هر څۀ نه ځان پاکونه، ځان نه د مېرې غز جوړونه.

ټولول به ئې هغه کا چې ممسک وي
پـــه بـــاز نه ئې قـــلاش پوهېږي ښۀ (خوشحال)

**بـازو** :-(با+زُوْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: بازوګان] (۱) د کټ بـازُو، د کټ څلورو اړخونو لرګو کښې یو لرګے، اړخ (۲) مټه، د لاس پورتنۍ حصه

برېښــوي قوي بــازو چې قامت خم شي
د کمان په شان خپل ضعف وقوف یو کا (کاظم خان)

(۳) د جالې هغه لرګے چې خیدونه یا شناسونه ورسره تړلي وي.

**بازوبند** :-(بازو+بَ+نْ+دْ) [پ، اس، مذ، وا] (۱) د ښځو یو کالے چې په مټ پورې تړلے شي (۲) په څرمنه کښې ګنډلے تعویذ چې سړي ئې په مټونو تړي.

**بازوګے** :- (بازو+ګے) [پ (ظفر) اس، تصغیر، مذ، وا، ج: بازوګي] لنډې بازُو، د کټ وړوکے اړخیز لرګے،

**بازونکے** :-(با+زُو+نْ+کے) [اف: پ (قاموس) اس، فا ع، مذ، وا، ج: بازونکي] خرڅ کوونکے، بې ځایه لګوونکے، بائلونکے فضول خرڅي کوُونکے.

**بـازي** :-(با+زِيْ) [فا، اس، مؤ، وا] (۱) لوبه (۲) داؤ، جواري (۳) دوکه.

عاقبت به د دې فرد بازي باخته شي
چـــارو دو لري تل شش وپنج عبث (کاظم خان)

(۴) دا بازي یا بائېزي مخفف.-دا عموماً د خېلونو نومونو کښې استعمالېږي.

**ـــ خوړل** :-(اص) (۱) دوکه خوړل، دوکه کېدل، غُلبېدل، (۲) بـازي ګرې اړول، لوټ په لوټ اوړېدل.

**ـــــ کول** :-(اص) (۱) لوبه کول (۲) جواري کول (۳) دوکه کول.

په هوا ئې سترګې تورې د شاهین کړې
چې بـــازي کـــا په تزویر د چرخ کوتره (کاظم خان)

**ـــــ ګټل** :-(اص) (۱) لوبه ګټل (۲) د جوارۍ داؤ ګټل، (۳) کامیاب کېدل، مخکښې کېدل، د ټولو نه وړاندې کېدل، بازي وړل.

**ـــــ وړل** :-(اص) و ـــ بازي ګټل

**په جهان بازي کول** :-(اص) دنیا معمولي ګڼل، دنیا پورې زړۀ نۀ تړل

چې بازي په جهان کــــړمه هغه زۀ یم
هم ئې یوسم، هم ترې یوسم هم پرې نۀ یم (خوشحال)

**سر بازي کول** :-(اص) سر ورکول، په یوه معامله کښې د خپل ځان پروانه ساتل، ځان قربانول، په سر نۀ اړ کېدل، سر په داؤ کول سر په تلي کښې کښېښودل.

**کج بازي** :-(اص) دوکه، چل ول، ټګي ټوري، مخالفت

راست روي مې لکه رُخ نۀ ده پرې اېښې
کـــه فلـــک راسره کـــړې کج بازي ده (کاظم خان)

**بازید** :-(با+زِيْ+دْ) [پ، اس، معرفه مذ] (۱) د بایزید مخفف، بایزید انصاري، د روښانیه فرقې مشر، (۳) د پښتنو د ځینې خېلونو نوم.

**بازیچه**:-(با+زِيْ+چَه) [فا، اس، مؤ، وا] لوبه، د بازي اسم تصغیر

**بازیګر** :-(با+زِيْ+ګَ+رْ) [فا، اس، فا ع، مذ، وا، ج: بازیګران (مؤ، وا: بازیګره، ج: بازیګرې] (۱) لوبغاړے، (۲) مداري جادوګر، (۳) چالاک، دوکه باز، چل ولي، ټګ، سیانه، (۴) بې اصوله، دوه ژبے، دوه مخیز ډولکے

رنګا رنګ بـــازۍ کاندي
دا فلـــک دے بـــازیګـــر (خوشحال)

(۵) د کونترو یو قسم چې په الوتو کښې بازیګري اړوي.

**بازیګر** :-(با+زِيْ+ګَ+رْ) [پ، فا: باز دیګر] و ـــ بادیګر.

**بازیګرې اړول** :(اص) بازي خوړل، لوټ په لوټ اوړېدل، خربازي خوړل (ګن)

**په چا بازیګرې اړول** :-(اص) د چا ښۀ ګوښمال کول، ښوک ښۀ ټکول، ښوک په زمکه راویشتل، ښوک ښۀ پستول.

**بازیګر کونتر** :-(اص) هغه کونتر چې په هوا کښې بازیګرې اړوي.

**بازیګري** :-(بازي+ګَ+رِيْ) [فا، اس، مؤ] چال بازي، دوکه بازي، ټګي ټوري، مداریتوب، جادوګري.

**باس** :-(با+سْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: باسونه] د اودس ماتي ځاے، ټټۍ، بیت الخلا.

**باس** :-(با+س) [پ (عا) ع: بحث] بحث

**باس خاص** :-(باس+خا+ص) [پ (یو)] خبرې اترې، لکه: "فلاني سره مې څۀ باس خاص نشته"

**باسار** :-(با+سا+رْ) [اف: پ (قاموس) اس، ص، مذ (مؤ، وا: باساره، ج: باسارې)] و ـــ بادخاره.

**باسل** :-(با+سْ+لْ) [پ، مص مت، راوباسل مخفف] ایستل، باهر ته کول، ویستل، اوباسل، شړل، خارج کول، خارجول

**غوږ باسل** :-(اص) د چا خبرې ته غوږ اېښودل، د چا خبره غور سره اورېدل یا منل.

**باسلے** :-(با+سَ+لے) [اف: پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج: باسلي] اوباسلے، ایستلے شوے، بهر ته شوے، بې دخله شوے، خارج شوے، شړلے شوے

**باسمه** :-(با+س+مَه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: باسمې] تله دار ټوکے چې هغې نه پردې جوړېږي.

**باسنه** :-(با+سْ+نه) [پ، حمص] اوباسنه، ایستنه، ویستنه، بهر کونه، خارج کونه، شړنه.

**باسورجن** :-(با+سُور+ج+نْ) اف: پ (قاموس) اس، ص، مذ، وا، (م: وا: باسورجنه، ج: باسورجنې)] لېونے اوښ، مست اوښ، بادسر،

اړې مار اوښ

**باسُونکے** :-(با+سُو+نْ+کے) [پ ، اس فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : باسُـونکې] اوباسونکے ، ایستونکے ، ویستونکے ، خارج کوونکے ، شړونکے۔

**باسه** :-(با+سه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] بایکړ

**باسي** :-(با+سيْ) [پ ، ص] پاتې شوے ، سخا ، بوئي ناک ، بدبویه ، د شپې یا د بل وخت نه پاتې شوے ، بېګانې۔

**باش** :-(با+خ+یا شْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] هغه اس چې څلور واړه پښې ئې سپینې وي۔او په تندي ئې هم سپین داغ وي۔دا اس ډېر ښۀ ګڼلے شي۔نېک مرغے اس ،

**باشه** :-(با+شَه) [پ (خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : باشې] و ـــ باخه

**باښه** :-(با+خه یا شَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : باښې] و ـ باخه

د شهباز تر ځایــه کله باښه رسي
که راوړې ئې له ځایه پروبال دے (خوشحال)

**باښــه ګـــی** :-(باښــه+ګ+ی) [اف : پ (قـاموس) اس ، م] بمبـرۍ ، د پتنګانو یو قسم

**باطل** :-(با+ط+لْ) [ع ، ص ، مذ ،وا ، (مؤ ، وا: باطله) ] دروغ ، د حقیقت مخالف ، بې حقیقته ،

**باطن** :-(با+ط+نْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] د ظاهر مالف ، پټ ، دننه ، اندرون ، زړۀ۔

خدایه څۀ شو هغه ښکلي ښکلي خلق
په ظاهر په باطن سپین سپېڅلي خلق (رحمان)

**بـاطني** :-(بـا+ط+ن+يْ) [پ ، تـر ، ص] (۱) پـټ ، دننـه ، انـدروني پـه زړۀ کښې دننه ، (۲) د یوې فرقې نوم۔

**باعث** :-(با+ع+ثْ) [ع، اس ، مذ] وجه ، سبب ، علت

**له دې باعثه** :-(اص) له دې کبله ، په دې وجه۔

**په څۀ کار کښې باعث کېدل** :-(مح) په څۀ کار کښې مدعي کېدل په یو کار کښې ډېر کوښښ کول۔

**باعظمته** :-(با+عَ+ظْ+مَ+تَه) [پ ، ص] لوے ، عظیم ، بارعبه ، رُعبدار ، عزتمند ، درُوند ، مشر ، طاقتور ، باوقار۔

**باعمله** :-(با+عَ+مَ+لَه) [پ ، ص] نېک عمله ، یقین کوونکے ښۀ عقیده لرونکے ، د اصولو پابند۔

**باغ** :-(با+غْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : باغونه] د مزکې هغه ټوټه چې په کښې مېوه دارې ونې یا ګلونه لګېدلي وي ۔ګلستان

ستا له باغـــه خزان هسې دور تروسه
چې شي بوټے د چمن ستا په دستار ګل (کاظم خان)

**باغ باغ کېدل** :-(اف) اص۔ډېر خوشحالېدل ، زیاته خوشحالي حاصلېدل

**باغ وراغ** :- لُغ۔باغ او چمن ، اص۔د مېوې باغونه او ښۀ چمنونه ګلستان۔

نوبـهار له بـاغ وراغ سره اشنـا شو
په سرو سترګو یې ژړل څنې جدا شو (کاظم خان)

**باغبان** :-(باغ+با+نْ) [فا ، اس ، فـا ع ، مذ ، وا ، ج : باغبانان] (۱) بـاغوان ، مالي ، مالیار ، د باغ څوکیدار ، باغ سنبالوونکے

په شدت د باغبان کله طوطیان دروم
چې مېـوه یېد اشجار په شاخ پخه شي (کاظم خان)

(۲) سبزي خرڅوونکے ، (۳) د یو قوم چې د باغبانۍ کار کوي۔

**باغباني**:-(باغ+با+ن+يْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا] باغواني ، مالي توب

**باغچه** :-(با+غ+چه) [فا ، اس ، تصغیر ، مؤ ، وا] باغیچه ، ورکوټے بـاغ ، د ګلونو او مېوؤ یو څو بوټي۔

**باغکـه** :-(بـا+غَ+کـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بـاغکې] (۱) یـو مارغۀ چې رنګدار او ښائسته وزرونه لري۔(۲) یو شین کانړے چې د لوبو دپاره ترې مړدکے جوړېږي۔بغکه۔

**بـاغلي** :-(بـا+غ+لـيْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، جمع] بـاغولي ، بـاګړي ، د لوبیا کچه پلي چې خلق ئې د ساګ په طور پخوي۔

**بـاغو** :-(بـا+غُـو) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] (۱) د ماشـومانو یـو مـرض (۲) غتۀ پیشو ، پیشو پړانګ۔

**بـاغوان** :-(بـاغ+وا+نْ) [پ ، اس ، فـا ع ،مـذ ، وا ، ج : باغوانـان ، (مـؤ ، وا: باغوانه ، ج : باغواناني) ] و ـــ باغبان۔

چې ئې ګل ستا د چمن په سر کښې نشته
که ګدا د ګل باغـــوان شي نـــو پرې څۀ (اخون ګدا)

**باغواني** :-(با+غ+وا+ن+يْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] و ـ باغباني

**باغوټ** :-(با+غُوْ+ټ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د دانې یو قسم چې اکثر د غوړ لاندې راوزي ، ستغ یا سویکې۔ (۲) انجیره

**باغې** :-(با+غْ+ی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـــ باغکه

**باغیچه** :-(با+غيْ+چَه) [پ،اس، تصغیر، مؤ ،وا ، ج : باغیچې] و- باغچه

**باغي** :-(با+با+غ+يْ) [پ ، ص] د ځنګلي په مقابله کښې هغه مېوه یا ګل چې په باغ کښې لګولے شوے وي۔لکه: "باغي انار، باغي انګور ، وغېره

**بـاغي** :-(بـا+غ+يْ) [ع ، اس ، ص] بغـاوت کـوونکے ، یـاغي ، تښـتېدلے ، بدرهه ، مفرور ، د قانون مخالفت کوونکے ، سرتېزه

**باقر** :-(با+ق+رْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] (۱) په دولسو امامانو کښې د یو نوم (۲) د ایران یو لوے فلسفي عالم باقر داماد۔

**باقرخاني** :-(با+ق+رْ+خا+ني) [فا ، اس ، مؤ] د پراټې یو قسم ، شیرمال ، دا د مېدې ، غوړو او پئیو نه جوړه شوې وي۔

**باقې** :-(با+قَ+ی) [پ (سو) اس ، مؤ] و ـــ باکې

**بـاقي** :-(بـا+ق+يْ) [ع ، اس] (۱) د الله تعالـٰی یـو نـوم (۲) پـاتې (۳) پـاتې کېدونکے ، (۴) بقایا (۵) نور

هېڅ ئې په کار نۀ دي رحمان تا غوارې دلبره
دا زمــا رضـــا ده باقـــي هر څۀ ستا رضا (رحمان)

**باقي دار** :-(باقي+دا+رْ) [فا ، مف ، مذ ، وا ، ج : باقي داران ، مؤ: باقي داره ، ج : باقي دارې] مقروض ، د چاپه ذمه چې قرض یا بقایا پاتې شي۔

**باقي مانده** :-(باقي+ما+نْ+ده) [فا ، ص] پاتې شوے۔

**باقیات** :-(با+ق+یا+تْ) [ع ، اس ، جمع] پاتې شوې څیزونه ، پاتې شوې پیسې ټکې۔

**باک** :-(با+ک) [فا ، اس ، مذ ، وا] یره ، فکر ، پروا ، نقصان

که په غر په سم ګرځم باک مې نشته
مزرې تل ګـرځي په لوړې په ژورې

**بې باک** :-(اص) (۱) بې یرې ، بې فکره ، بې پروا (۲) بې ادبه ، بې شرمه ، بې حیا۔

**بـاکو** :-(بـا+کـو) [اف : پ (قـاموس) اس ،مـذ] (۱) لـوے ورور ، مشـر ورور (۲) د یوسفزو یو پخوانے مشر چې باکو خان به ئې ورته وې

**باکو کړ** :-(با+کو+کْ+ړ) [پ (ظفر) اس ، مذ ، وا ، ج : باکو کړان] ځنګلي چرګ ، د تور رنګ یو حلال مارغۀ چې د کونترې نه غټ وي

**باکه سارے** :-(با+کَه+سا+رے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ، وا] یو قسم ګلۀ چې یو ښکر ئې ورکوټے وي۔

**بـاکې** :-(بـا+ک+ی) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] جاریسـتل ،قـے ، خولـۀ باکې ، له مخه ، اُلټې ، کوز کتل ، باقې ډوکې کول۔

ـــــ **کول** :-(اص) قے کول ، جاریستل ، له مخه کول ، خولۀ بـاکې کول ،

اُلټې کول ، کوز کتل۔

**ــــ کېدل** :- قے کېدل ، خولۀ باکې کېدل ، لـه مخـه کېدل ، څۀ ځیز نۀ هضمېدل۔

**باګرام** :-(با+ ګْ+ را + مْ) [اس ، معرفه] د پېښور ښارزوړ او پخوانے نوم ۔

**باګره** :-(با + ګْ + رَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : باګرې] و- باخو۔

**باګو**:-(با+ګو) [اف : پ (قاموس) اس،مؤ،وا، ج : باګووې] و ـــ باخو

**بـاګو** :-(بـا+ ګُـو) [پ (ظفرـ راورټي) اس ، مـذ] د ویـرې یـو خیـالي او فرضي ځیز ۔بلا ، بؤ ، بګلولی ، بګبلے ، ماشومان چې ورانے کوي نو په دې ئې یروي۔

**بـاګولی** :-(بـا+ ګـو + ل +ی) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] (۱) و ـــ بـاخو (۲) (راورټي) بګلولی ، بؤ ، بلا ، باګو

**بـاګوه** :-(بـا+ ګ +وه) [اف ، پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بـاګوې] و ـــ باخو

**باګه** :-(با+ ګه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : باګې] (۱) لافې شافې ، لوئې خبرې ، ډوزې ، د بډیایۍ خبرې۔

چې حاصل راته دولت د عاشـقۍ شو

راښائېږي اوس که کړم وربانديې باګې (عبدالعظیم)

(۲) بګه ، پرتوغانې ، پرتوګانې (۳) سو : دائره۔

**باګه منزرے** :-(با+ ګَ + ه + مَ + ن + زَ + رَے) [پ (سو) اص] د ماشومانو یوه لوبه ۔په دې لوبه کښې دا صورت وئیلے شي :- ''یو منزرے نشته چې دا باګه خلاصه کړي ''۔

**بال** :-(با + لْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بالونه] غنډسکه ، پنډوس ، فټبال ، توپ،ګېند ،پټاکه

**بالا** :-(با+ لا) [فا ص] والا ، (۱) پورته ، اوچت ، بره

(۲) د کلو نومونو سره راځي۔بر۔لکه : '' تهکال بالا ، مانېرۍ بالاوغېره۔

**ــــ کول**:-(اص) (۱) پورته کول ، اوچتول ، بره خېژول (۲) مرتبه زیاتول۔

**ــــ کېدل** :-(اص) (۱) پورته کېدل ، اوچتېدل ، (۲) مرتبه زیاتېدل

**ــــ بالا** :-(اس مر) بلا واسطې څۀ کار کول ، پاس پاس فېصله کول لکه : ''هغه ټول کارونه بالابالا کوي۔''

**بـالا پټـر** :-(بـالا+ پ + ټَ + رْ) [پ اس ، ص ، مـذ ] مرکـز ، د اختیـار ځـاے ، د حفاظت ځـاے ،مشرۍ ځـاے ، لکه '' هغـه پـه بـالاپټـر کښې ناست دے ''

**ــــ کول** :-(اص) د چا د نرۍ نه بهر ویستل ، د نوکرۍ نه برخاست کول ، ډِس مس کول ، لکه : '' هغه ئې بالاپټر کړو''

**بالا تر** :-(بَالا+ تَ + رْ) [(فا ، ص] د ټولو اوچت ، په هر څۀ دپاسـه ، ډېر غوره ، اعلیٰ

**بالاحصـار** :-(بـالا+ ح + صـا + رْ) [فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بالاحصـارونه] پـه مختلفو ځایونو کښې په اوچتو ځایونو جوړې شوې د ځینو قلاګانو نوم ۔لکه د پېښور بالاحصار ۔

**بالاخانه** :-(بالا+خا+ نَه) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بالاخانې] د کوټې دپاسـه کوټـه ، پاسنے چت ، پورتنۍ کوټه ، پورتنے منزل۔

**ــــ کښې کښېنول** :-(اص) په ښځه پېشه کول۔

**بالادست** :- لُغ : چې لاس ئې بره وي۔اص : د اوچتې او لـوېې مرتبې خاوندان۔ زورور ، طاقتور۔

تل په ستغ درومي اوبۀ د بالادستو

چې نظر په فواره یا ئې په داب کړم (کاظم خان)

**بـالاکوټ** :-(بـالا+ کو+ ټ) [فـا ، اس معر ، مذ] پـه هزاره ضلع کښې د هغـه ځـاے نـوم چېرتـه چې سېد احمد بریلوي د سکانو سره جنګ کښې شهید شوے ؤ۔

**بالا مانړې** :-(بالا+ ما + نْ + ړی) [پ ، اس ، مؤ ] لُغ : اوچتـه مـانړۍ۔ اص : د پېښور ښار سره جُخت یو ځـاے ، متل :- '' بالامانړۍ دې خلاصه وي په نوم د اکبر خان ''۔

**بالانشـین** :-(بـالا+ نَ + شـيْ + نْ) [فـا ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، (مـؤ ، وا: بـالا نشینه ، ج : بالانشینې) ] لُغ : اوچته ناست ، اص : د عزت پـه ځـاے ناست ، د درناوي په ځـاے ناست۔متل :- '' کم خرچ بالانشین ''

**بالا ئي** :-(با+لا+ئيْ) [فا،ص،مؤ] لُغ : اوچتوالے،اص: پېروے ارباش۔

**ـــ آمدن** :-(اص) د رشوت یا بډو پېسـه ، اصلي امدنۍ نه عـلاوه نوره ګټه ، بهرنے امدن۔

**ـــ خرڅ** :-(اص) هغه خرڅ چې د مقررې اندازې نه زیات وي۔هغه خرڅ چې په حساب کښې نۀ وي راوستے شوے۔

**بالا ئې طاق** :-(با+لائې + طا + ق) [فـا ، ص] لُغ : د تاخ یـا درې دپاسـه ، اص : څۀ ځیز پرېښول ، هېرول یا څۀ اهمیت نۀ ورکول۔

**بال بال** :-(بال + بال) [اف : پ (قاموس) مذ] خوشحاله ، په طبعه

**ــــ کېدل** :-(اف) اص : خوشحاله کېدل ، په طبعه کښې کېدل۔

**بـال بکـے** :-(بـال + بَ+ کـے) [پ (خـل) اس ، مـذ ، وا ، ج : بـال بکـي] یـو خوشرنګه وزرونـو وال چینـجے چې پـه ګلونـو ګرځـي او پـه شـین بـوټي کښېني۔ببوزے ، بولکے ، پتنګ ، پرپرکے۔

**بـالبوزک** :-(بـال + بُوْ + زَ + کْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] یـو قسم غرئیـز بوټے دے۔تره تېزک۔

**بـالټی** :-(بـا + لْ + ټ + ی ) [پ ، ه : بـالټي ، اس ، مـؤ ، وا + ج : بـالټې ] (۱) د اوبو دپاره لوے لوښے چې د ټیم یا د جستو د ځادر نه جوړ وي (۲) ټـاټکے ، هغـه لوښے چې ختمې لـوټې پـه کښـې چلولے شـي (۳) د قبدیانو د خوراک څښاک لوښے

**بالښـت** :-(بـا+ لَ+ خْ + ت یـا بـا + لْ + شْ + تْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بالښتُونه یا بالښتان] بالش ، بالشت ، تکیه ، سروېږد ۔

**بالَښتک** :-(بـا+لْ+ خ+ تَ+ ک یـا بـا + لْ + شْ+ تَ + کْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، تصغیر ، مذ ، وا ، ج : بالښتکونه یا بالښتکان] (۱) وړوکے بالښت ، بالښتکے ، بالښتے (۲) سرئي۔

**بـالغ** :-(بـا + لِ + غْ) [ع ، ص ، مـذ ، وا ، ج : بالغـان ، (مؤ ، وا: بالغـه ج : بـالغې) ] ځـوانۍ تـه رسېدلے ، ځوان ، د پـوخ عقـل خاونـد ، د پـوره عمر ، وخت ته رسېدلے۔

**بالکه** :-(با + ل + کَه) [اف : پ (قاموس) اس ،مؤ ، وا ، ج : بالکې] هغـه نلکۍ یا نچۀ چې د لوګي د وتو او چیلم څښلو دپاره جوړه وي

**بالکه چي** :-(بالکـه + چِ + يْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] خدمتګار ، بالکے ، نوکر

**بـالکے**:-(بـا+ لْ + کَے) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بالکیـان] خـادم ، وړوکے نوکرکے ، هغه خدمتګار چې د اور لګولو کار ئې په ذمه وي۔

**بالڼ**:-(با+ لَ+ نْ + ړْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بالڼونه]

(۱) د سوځولو لرګے ، خشاک (۲) د قیمې یا قورمې یو قسم۔

**بالنګ** :-(با + لَ + نْ + ګْ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بالنګان] د نارنج یو قسم چې تریو وي۔

**بالو** :-(با+ لُوْ) [اف : پ (قـاموس) هـ : بهـالو ، اس ، مذ ، وا ، ج: بالُوګان] یـو ځنګلي ځناور ، مېلو ، یږ۔

**بالی** :- (با + لَ+ی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] والـۍ ، د غوږونو یو قسم

کالے ، اوبزې ۔

**بالین**:-(با + لِيْ + نْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بالینُونه] بالښت ، مُتکا ، تکیه

**ـــــ په بالین سر ږدل** :- لُغ : په بالښت سر اېښودل ، اص : اوده کېدل ، ارام کول ، خوب کول ، سر لګول.

په شپه حال د مهجورانو په زړهٔ راوړه
په راحت چې سرله نازه په بالین ږدې (پیر محمد کاکړ)

**بام** :-(با+ مْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بامونه] (۱) بلبې ، چَت ، د کوټې دپاسه (۲) ترقي ، لویه مرتبه.

**ـــــ په بام ختل** :- لُغ : په بلبې یا کوټه ختل اص (۱) ترقي کول ، مرتبه زیاتېدل (۲) غرور کول ، مغروره کېدل.

**ـــــ په بام خېژول** :- لُغ : په بلبې یا چَت خېژول ـ اص : (۱) څوک په ډېر تعریف پړسول ، چاته باد ورکول ، (۲) ترقي ورکول، مرتبه زیاتول

**ـــــ له بامه لوېدل** :-(راورتي) لُغ : د بلبې یا چت نه ښکته راپرېوتل ، د چت نه راګذارېدل. اص : له لوئې مرتبې نه ښکته کېدل ، درجه کمېدل.

**بامبره** :-(با+ مْ+بْ + رَه) [پ (گن + ب ،خ) اس ،مؤ ، وا ، ج : بامبرې] مچی ، ډنبره ، غُومبسه.

**بامبړ** :-(با+ مْ + بْ + ړْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بامبړان ( مؤ ، وا : بامبړه ج : بامبړې) ] بامبڼ ، د هندوانو مذهبي پېشوا ، بامڼ ، برهمن ، پنډت.

**بامبړه** :-(با + مْ + بْ + ړه) اف :پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج : بامبړې] (۱) د اور لمبه (۲) د بامبړ ښځه.

**بامبو** :-(با+ مْ + بُوْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) د مچو یا بامبرو اواز ، (۲) بانس ، بمبو.

**بامبڼ** :-(با + مْ + بَ + نْ + ړ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بامبڼا ن (مؤ، وا : بامبڼه ، ج : بامبڼې) و ـــ بامبړ.

**بامبېږ**:-(با+ مْ + بې + ږْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] شور، زوږ ، بامبېڼ

**ـــــ کول** :-(اف) اص ، شور زوږ کول.

**ـــــ کېدل** :-(اف) اص ، شور زوږ کېدل.

**بامبېږ** :-(با+م + بې + ږْ) [ پ (ظفر) اس،مذ] (۱) درنه لاتجه (۲) ګڼه ګوڼه (۳) شور زوږ.

**بامبېلکے** :-(بام + بې + لْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا: بامبېلکي] پرپرکے ، تاروګے ، بانېک ، بمبیرې.

**بامبېڼ** :-(با+ مْ + بې + نْ + ړْ) [پ (یو) اس ، مذ] و ـــ بامبېږ

**بام خېل** :-(بام + خې + لْ) [پ، اس ، معر ، مذ ، وا] په صوابۍ تحصیل کښې د یو کلي نوم.

**بامره** :-(با+ م + ره) [اف :پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بامرې] د تېوبې غاړه یا کناره ، د تېوبې دېوال ، د کولې چنه.

**بامل** :-(با+ م + ل) [اف : پ (قاموس) مص] پالل ، اشنائي ، دوستي قائم لرل.

**بامله**:-(با+ مَ+لے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ،ج : باملي (مؤ: بامېلې)] چا سره پاللے اشنائي دوستي ، چا سره جوړه شوے دوستي ، خپلولي کول ، رشته جوړول

**بامنه** :-(با+ مَ + نه) [اف : پ (قاموس) حمص] پالنه ، اشنائي ، دوستي قائم ساتنه.

**بامنه** :-(با+ مَ + نْ + ړه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ،ج: بامنې] ګُور ، لوګے، ډېر زیات لوګے.

**بامُونکے** :- (با+ مُوْ + نْ + کے) [اف : پ (قاموس) فا ع ، مذ ، وا ، ج: بامونکي (مؤ : بامونکې) ] اشنائي دوستي کوونکے ، دوستي پالونکے ، دوستي قائم ساتونکے.

**بامه** :-(با+ مَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هغه ځلوبښت ورځې چې پېشوګانې په کښې ګرمېږي یا غوبمه کېږي.ځله یاچله.

**بامیان** :-(با+ م + یا + نْ) [پ (روسي قاموس) اس ، مذ] د کابل نه قبلې طرف ته یوه غرئیزه علاقه.یو وادی ، یوه دره ، یوه زړه علاقه چې په کښې د بدهمذهب د زمانې بُتان او اثار اوس هم موجود دي.

**بُتِ بامیان** :-(اف) اص .د بامیان په علاقه کښې یو لوے مشهور بُت چې خلک ئې د لرې لرې نه کتو دپاره راځي.

**بامي خېل**:-(با+ مي +خې+لْ) [پ،اس،معر] د پښتنو د یو خېل نوم

**بان** :-(با+ نْ) [پ ، اس ،مذ] بوڼ ،باڼ،د مزرې د پټو نه غښتلې شوې رسۍ ، پړے ، واڼ.

**بانات** :-(با + نا + تْ) [پ (راورتي) اس ، مذ] د لوے بر یوه پشم داره کپړه ، بنات

**بانجڼ**:-(با+ن +جَ +نْ +ړْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــ باتنیګړ

**بانجو** :-(با+ ن+ جو) [اف : پ (قاموس) اس ، ص] د سپي هغه وړوکے بچے چې لاسترګې ئې نۀ وي پرانستې ، تازه پېدا شوے کوترے ، کیکرے.

**باند** :-(با+ نْ + د) [پ ، ص] (۱) باندې ، د پاسه ، پر (۲) په ذمه ، ورپورې (۳) د چا د ډلې وړه یا زیاتوالے.

**ـــــ راختل** :-(اص) (۱) د چا په بدن څۀ دانې وغېره راڅرګندېدل (۲) په ناست څیز باندې د چا پاس راختل (۳) په چا حمله کول.

**ـــــ کول** :-(اص) (۱) کټوې د اور دپاسه اېښودل ، پخلے کول ، کټوی په انغري اېښودل ، (۲) په څناور بار لېږدول.

**پر باند اَړول** :-(اص) څوک پور لاندِ راوستل ، په چا قرض وراړول .په چا احسان ور اړول.

**په چا راباند کول**:-(اص) د چا زدو کوب کول ، څوک وهل ، وهل ټکول.

**دام یا ښکر باند کول** :-(خل) اص : د مارغۀ یا د څناور د نیولو دپاره دام یا ښکر تیارول ، لټ باند کول.

**درباند کول** :-(اص) (۱) یو څیز د چا په سر کښېښودل (۲) په چا د وهلو لاس پورې کول.

**راباند کول** :-(اص) په چا د وهلو لاس پورې کول ، څوک وهل ټکول.

**ورباند کول** :-(اص) (۱) څۀ څیز د چا په سر کښېښودل ، (۲) په چا د وهلو ټکولو لاس پورې کول .

**لاند باند** :-(اص) کوز او پورته ، یو بل د پاسه ، ښکته پورته.

**بانده**:-(با+نْ+ دَه) [پ (سو) اس، مؤ] ناغه، تړون، قومي جرمانه، پابندي.

**باندې** :-(با+ نْ + د+ يْ) [اف : پ (قاموس)] (۱) باند ، باندے ، پاس ، دپاسه، پورته (۲) په ذمه ، ورپورې.

**باندې توب** :-(باندې + تو + ب) [اف: (قاموس) ص ، مذ] پورته والے ، پاس والے ، برې ، اوچتوالے ، بره والے.

**باندې کول** :-(اف) اص.و ـــ باندې کول.

**باندې کېدل** :-(اف) اص : (۱) د کټوې وغېره اور دپاسه کښېښودل .پخلے کېدل (۲) د چا ډله اوچتېدل.

**پر باندې کول** :-(اف) اص ، په څناور باندې بار لېږدل .

**پر باندې کېدل** :-(اف) اص (۱) بار په څناور لېږدېدل (۲) قرضدار کېدل.

**باندینے** :-(با+ نْ+ دي + نَے) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، (مؤ ، باندینې)] پاسنے ، اوچت ، دپاسه ، پر باندې.

**باندینے مخ** :-(با+ نْ+ دي+ نَے + مَ+ خْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] د یو

څیز بهرنۍ اړخ ، لکه د نالۍ مخ ، د توشک ابره ، د کپړې سم مخ ، پورتنۍ مخ.

**باندینۍ وړے** :-( با+ نْ+دي + نَې + وَ + ړَے ) [ اف : پ (قاموس) ص، مذ ] د مړوند غټ رګ.

**بانډ** :-( با + نْ + ډ ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بانډونه ] (۱) بونډ ، د سند په طور یو کاغذ چې په لمبر راوتو ئې اخستونکي ته انعام ورکړے کېږي. (۲) معاهده ، تړون ، ضمانت نامه.

**ـــــ اخستل** :-( اص ) (۱) ضمانت یا تحریري اقرار اخستل (۲) د لسو یا پنځو روپو بونډ اخستل.

**ـــــ راوتل** :-( اص ) په قرعه اندازۍ کښې د بانډ لمبر راوتل ، انعام حاصلول.

**بانډار** :-( با+ نْ + ډا + رْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بانډارونه ] بنډار ، جمع ، غُنډه ، ډله ، د دوستانو مجلس.

**بانډه** :-(با+ نْ+ ډَه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بانډې ] (۱) یو وړوکے کلے ، د یو څو کورونو ابادي (۲) په مېره یا شولګره کښې یو څو کوره ابادي چې د یو لوے کلي سره تړلې وي.او مالک یې په هغه کلي کښې اوسېږي (۳) ځوړند ، نښتے ، (۴) د ځینې کلو نومونه.

**ـــــ کول**:-( ظفر ) اص.(۱) د یو څیز بل څیز سره نښلول ، ګېرول یا ځوړندول. اوېزاندول ، څوک د مرضۍ او خواهش نه خلاف ایسارول (۲) څوک په مېنځ و مانه کښې پرېښودل ، د چا کار ایسارول.

**ـــــ کېدل** :-( ظفر ) اص.په څۀ مجبورۍ د چا چېرته ایسارېدل.

**بانډه ګوټې یا بانډه ګوړې**:-( اس تصغیر ) یو وړوکې بانډه، یو څو کورونه.

**بانډه ګی**:-( بانډه+ګی ) [ پ ،اس معر ،مؤ ] په دیر کښې د یو کلي نوم.

**بانډه وال** :-( بانډه + وا + لْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بانډه والان ، (مؤ ، وا ، بانډه واله ، ج : بانډه والې ) ] لغ : د بانډې اوسېدونکے ، بانډیچي ، بانډیخي ، اص.ساده ، بې تعلیمه ، بوده ، ناپوهه.

**بانډیچي**:-( با+نْ+ ډي +چي ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بانډیچیان (مؤ،وا،بانډیچۍ،ج : بانډیچیانې ) ] و ـ بانډه وال.

**بانډیسي** :-( با+نْ+ډي+سيْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ،ص ، مذ ، وا ] (۱) و ـ بانډیچي (۲) (راورټي) هغه شپون چې ځاے په ځاے ګډې بیزې څرند پسې ګرځوي.

**بانس** :-(با+ن +رَ+سْ ) [ پ،اس ،مذ ، وا ، ج : بانسونه ] یو مضبوط ریشه دار لرګے چې په نمر ختیځ پاکستان کښې ډېر پیدا کېږي.

**بانکه** :-( با + نْ + ړْ + کَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بانکې ] بانکه ، د سپینو زرو نه جوړ د پښو یو کالے.

**بانوکه** :-(با+ن+ رُو + کَه ) [ اف : پ (قاموس) ص ] سړے یا ښځه چې په نشه کښې مست وي.

**ـــــ کېدل** :-( اف ) اص.مدهوشه کېدل ، په نشه کښې مستېدل

**بانیچغ** :-(با+ نْ + ړيْ + چَ + غْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ] و ـ بانیچخ

**بانک**:-( با+نْ + کْ ) [ انګ،بېنک (Bank) ،اف ، اس ، مذ ، وا ] بېنک ،

**بانکه** :-(با+ نْ + کَه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بانکې ] د سپینو زرو نه جوړ د پښو یو کالے.

**بانکه** :-( با+ ' + کَه ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ] کاکه ، یو مست او کلانکار

ځوان ، مغرور سړے ، بانکے ، ډولے ، هغه زلمے چې په ځان ډېر لاس وهي.

**بانکے** :-(با+ نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] و ـ بانکه

**بانګ** :-(با+ نْ+ ګْ ) [ فا ، پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بانګونه ] لُغ : غږ ، اص : (۱) د نمانځه دپاره بلنه ، اذان (۲) د چرګ اواز.

**ـــــ کول** :-( اص ) (۱) بانګ وئیل ، د مانځه دپاره جماعت کښې اذان کول (۲) د چرګوړي بانګ وئیل (۳) د یو هلک ځوانۍ یا بلوغت ته رسېدل.

**په غوږ کښې بانګ وئیل** :-( اص ) د نوي پېدا شوي ماشوم په دواړه غوږونو کښې اذان کول ، یعني د ژوند شروع د الله اکبر په نوم کول.

**بانګوړے** :-( با+ نْ+ ګو + ړَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بانګوړي ] ابنور ، پلاس ، زمبور ، امبور.

**بانګي** :-( با + ن + ګ + يْ ) [ پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : بانګیان ] (۱) هغه چرګ چې ځوانۍ ته رسېدلے وي.او بانګونه وائي. (۲) مؤذن.د مانځه دپاره بانګ ویونکے.

**بانګي توخے** :-( بانګي + ټُو + خے ) [ پ (ظفر) اس ، ص ، مذ ] توره ټوخلې ، لوے ټوخے ، پُخلے ، پاخولے.

**بانګۍ** :-( با+ نْ + ګ+ ی ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج ] د خښتو ، سیمټو یا نور سامان وړلو دپاره دوؤ ډانګو سره تړلے ترنګڼ چې د مزري د پړي یا د ټراټ نه جوړه شوې وي.مزدوره طبقه اکثر بانګۍ ساتي ، ډانګرۍ ( سو ) ټانګۍ.

**ـــــ کول** :-( اص ) سخت وهل ، بې عزته کول.

**بانګېټي** :-( با + نْ + ګې + ټې ) [ پ (سو) اس ، ص ، مذ،وا ، ج : بانګیټي ] بانګوټے ، بانګیړې ، هغه چرګ چې نوے نوے بانګ زده کوي.

**بانګېټي بانګ وئیل** :-( سو ) لُغ : د وړکوټي چرګ بانګ ویل ، اص: د هلک نه د ځوانۍ حرکات څرګندېدل.

**بانګیړے** :-( با + نْ + ګې + ړې ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بانګېړي ] و ـ بانګېټي.

**بانو** :-( با + نُ + وْ ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بانګان ] (۱) بې لښې مچۍ ، ماکو ، بانک ، مارمچۍ ، اکثر ئې په ژمي کښې ماشومان نیسي (۲) د زردالو یو قسم.

**بانو** :-( با+ نو ) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ] (۱) بي بي ، مېرمن ، هرې عزتمنې بي بي ته وئیلے کېږي.(۲) د زناناؤ د ځینې نومونو اخري برخه ملکه حسن بانو.

**بانه**:-( با+نه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بانې ] حیله ، بهانه ، عذر ، پلمه

د جهان بلا همه سره یو ځاے شوې

په بانه د عاشقۍ په ګدا راغله (اخون ګدا)

**ـــــ پیدا کول** :-( اص ) و ـــ بانه جوړول.

**ـــــ جوړول** :-( اص ) عذر ، حیله پیدا کول ، بهانه جوړول ، دروغ جوړول ، ټال متېول کول.

**ـــــ جوړېدل** :-( اص ) عذر ، حیله پیدا کېدل ، بهانه جوړېدل ، ټال متېول کېدل.

**ـــــ روغېدل** :-( اص ) و ـــ بانه جوړېدل.

**ـــــ سازول** :-( اص ) و ـــ بانه جوړېدل.

**ـــــ غوښتل** :-( اص ) د څۀ کار نۀ کولو دپاره څۀ عذر لټول ، د څۀ کار کولو دپاره حیله لټول.

**ـــــ کتل** :-( اص ) و ـــ بانه جوړول

**ـــــ کول** :-( اف ) اص.عذر لټول ، پلمه کول ، بهانه کول.

**ـــــ کېدل** :-( اص ) د څۀ کار دپاره د څۀ څیز سبب جوړېدل.

**ـــــ لټول** :-( اص ) و ـــ بانه جوړول

**ـــــ موندل** :-( اص ) و ـــ بانه جوړول.

**ـــــ ورته غوښتل** :-( اف ) اص : چاته فائده یا نقصان رسولو دپاره څۀ موقع

لټول او انتظار كښې اوسېدل.

**انې بانې كول** :-(اص) حيلې حوالې كول ،ټال متول كول، د كار نۀ كولو دپاره عذر لټول

**بانه گرے** :-(بانه + گ + رے) [پ اس ، ص ، مذ ،وا] و ـــ بانېگر.

**بانه مارې** :-(بانه + ما + ړ + ی) [پ، اس معرفه مؤ] و ـ بالاماني

**بانې** :-(با + نې) [ع فا ع ، مذ ، وا، ج : بانيان] بنا كښېښودونكے ، بنياد اېښودونكے ، شروع كوُونكے ، مؤسس.

**ـــــ مباني** :-(اص) خاص بُنياد اېښودونكے ، د يو كار د شروع كولو خاص ذمه وار ، د يو كار محرك ، خصوصي.

**بانېگر** :-(با+ نې + گَ + رْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا] بانه جوړونكے په كار كولو كښې حيلې لټوونكے ، دروغژن ، بانه گرے.

**بانېگرکے** :-(با+ نې + گ + رْ + کَے) [پ (خل) اس ، تصغير ، مذ ، وا] و ـــ بانېگر

**بانين** :-(با+ نيْ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د شاهين يا باز د قسم نه يو ښكاري مارغۀ.

**بانړ** :-(با+نړ) [پ ،اس،مذ] (۱) بوړ ، د مزرو پرے چې كتونه ترې بوټلي كېږي-واړ ، (۲) يوسف ، د كټ لنگه ، (۳) سو ـ شاتورے كټ.

**باڼو** :-(با+ڼو) [پ، اس ، مذ ، وا، ج : باڼوگان] و ـــ باڼۀ

**باڼو په باڼو اېښودل**:-(اف) لُغ : باڼۀ پر باڼۀ كښېښودل،اص :مړ كېدل.

**باڼو درنول** :-(اف) لُغ : باڼۀ سختول ، اص ، بدنيتي كول.

**باڼو درنول** :-(اف) لُغ : باڼۀ سختېدل ، اص: بدنيته كېدل.

**باڼو مړاوي كول** :-(اف) اص.تكليف رسول ، څورول.

**باڼۀ** :-(با+ نْ+ ڼَۀ) [پ ، اس ، وا ، ج : د سترگو زېزمو نه گېر چاپېره وېښتۀ ، مژگان ، مژه.

چې د زړۀ ويني مې جوش وهي له سترگو
هـــر باڼۀ مې لــــكه خار د كربــــلا كا (كاظم خان)

**باڼۀ درنېدل** :-(خل) سترگې پټېدل ، خوب ورتلل.

**باڼۀ لوندېدل** :-(اص) اوښكې راتلل ، ژړېدل.

**سترگو كښې باڼۀ كېدل** :-(اص) د سترگو يو مرض ، سترگې خرابېدل ، په سترگو كښې دننه وېښتۀ كېدل ،تكليف رسول.

**بـاو** :-(بـا + و) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] (۱) د اتشـك مـرض ، (۲) سوزاكې پمنوالے ، (خل) (ظفر) نرخ ، قيمت، بيعه

**ـــــ ختل** :-(اص) نرخ ختل ، نرخ زياتېدل.

**ـــــ راتلل** :-(ظفر) اص.نرخ راتلل ، قيمت زياتېدل.

**په باو اخته كېدل**:- (اف) اص (۱) د اتشك په مرض گرفتار كېدل (۲) پمنېدل.

**بـاوتوب** :-(بـاو + تـو + بْ) [اف : پ (قـاموس) حمص] د باد په مـرض اختـه كېدل، اتشكي كېدل.

**باوجود** :-(با+ و + جُو+ دْ) [فا] د موجودگۍ سره ، هستۍ سره ، سره ددې.

**باور** :-(با + وَ + رْ) [فا، پ ، اس ، مذ] يقين ، اتبار ، اعتماد ، مننه

**ـــــ كول** :-(اص) يقين كول ، اتبار كول ، منل.

زۀ بلبــــل د هغــــه باغ يم باور وكړه
چې ترگس ئې هم چشمې د شوخ اهو كا (كاظم خان)

**ـــــ كېدل** :-(اص) باور راتلل ، يقين كېدل ، اتبار كېدل ، تسلي كېدل.

**باورچڼه** :-(با+ وَ + رْ + چ + ڼه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : باورچڼې] اخلے پخلے كونكې ښځه ، د باورچي تانيث.

**باورچي** :-(با+وَ + رْ + چِي) [اف : پ(قاموس) ص ، مذ ، وا ، ج : باورچيان ، ج مؤ : باورچيانې] قاصد.

**بـــاورچي** :-(بـــا+ وَ + رْ + چـــيْ) [فـــا ، پ ، اس ، فـــا ع ، مـــذ ، وا ، ج : باورچيـــان ، (مـــؤ ، وا] باورچڼـــه ، ج : بـــاورچڼې] اشـــپز ، ډوډۍ پخوونكے ، اخلے پخلے كوونكے.

**باورچي توب** :-(باورچي +تو+ بْ) [پ ، اس ، مذ] د اخلي پخلي كار.

**بـــاورچي خانـــه** :-(بـــاورچي + خـــا + نَـــه) [فـــا + پ ، اس ، ص ، مـــؤ ، وا] ج : باورچي خانې] هغه ځاے چې چېرته اخلے پخلے كېږي-جارگے.

**بـــاوردي** :-(بـــا + و + رْ + د + يْ) [اُر ، ص] پـــه فـــوځي دربـــش (جامـــه) كښـــې -د نوكرۍ په جامه كښې تيار.

**باوري**:-(با+ وَ +ريْ) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : باوريان] اتباري ، معتمد.

باوري د بادشاهانو لكه غله شول (خوشحال)

**بـــاوړې** :-(بـــا+ و + ړَ +ى) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ] وړوكے تـــالاؤ چې پوړۍ ورته لگېدلې وي-ډېگۍ ، باولۍ.

**باوضع** :-(با + و + ضَ + عْ) [فا] وضعدار ، خوش اخلاقه ، شائسته درونډ ، سپين روبے ، د ښۀ روش پابند.

**باوضو** :-(با + وَ + ضُوْ) [فا ، اس ، ص] په اودس كښې.

**با وفا** :-(با+وَ +فا) [فـا ، ص] وفـادار ، رېښـتونے ، پاكـه مينـه لـرونكے ، نېک ، اتباري

**بـــا وقـــار** :-(بـــا + و + قـــا + رْ) [فـــا، ص ، مـــذ ، (مـــؤ ، وا، : باوقـــاره ، ج : باوقادرې] باعزت ، رُعب دار ، عزتمند ، شان شوكت لـرونكے ثقـه ، درونډ ، سپين روبے.

**بـــاؤ گـــان** :-(بـــا+ ؤ + گـــا + ن) [پ ، اس ، ج] د لاس يـو قسـم كـالے . كـنكڼ ، باووگان ، باوو.

**باولل** :-(با+ و + لَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] باز يا بابښه د ښكار نيولو دپاره تيـارول - په ښكار اموختـه كـول ، بـاولې وركـول ، چـل ورته ښودل.

**باولے** :-(باو + لْ+ لے) [اف : پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج : باوللي (مؤ ، باؤللې)] په ښكار بلد شوے ، ښكار دپاره اموخته شوے.په ښكار عادت شوے.

**باولنه** :-(با+ و + لْ + نه) [اف : پ (قاموس) حمص] په ښكار آموختـه كونـه ، په ښكار عادت كول يا بلدول.

**باولونكے** :-(با+ و + لُو + نْ+ كَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع، مذ ، وا، ج : باوُلونكي (مؤ : باولونكې)] مشكار ، هغـه سړے چې باز يا بابښه په ښكار اموخته كوي.د ښكار چَل ښووونكے.

**باوله** :-(با + و + لَه) [اس ، ص ، مذ] بوله ، بوده، ساده ، كم عقله بې فكره ، ناپوهه ، اوتر بوتر.

چې ديده دانسته سود ته ځان باوله كړي
دا مـــكار پـــه تـــاجـــرانو حساب نۀ دے (عليخان)

**باولے** :-(با+ و +لَے) [پ ، اس ، ص ، مذ] هغه سړے چې په حقيقت كښې زړۀ ور او د ځۀ كار كولو جوگه نۀ وي-ولې هسې خپل ځان قابل او مړنے ځرگندوي.

**باولے باولے كول** :-(اف) اص.بغېر د لياقت او پوهې نه يو سړي ته مهم كار سپارل.

**باولے وركول** :-(ظفر) اص.و ـــ باولل.

**باولي** :-(با+ و + ليْ) [پ، اس ، مذ ، وا] هغه مېدان چې ښكاري سپي يا باز او بابښې وغېره ښكاري مارغانو ته پكښې د ښكار نيولو چَل ښودلے شي.

نوے باز چې اول ښۀ په چرگ تيار شي
بـــيا بـــاولـــې ورلـــره بويه هنر وره (خوشحال)

**باولۍ** :-(با+ و + لْ+ى) [اس ، مؤ] و ـــ باوړې

**باوو** :-(با+ وُوْ) [اپ ، اس] و ـــ باؤگان

**باوي** :-(با+ وِيْ) [پ (خل) اس ص ، مذ] د باؤ مريض ، پمن ، آتشکي ، سوزاکي ، په باؤ اخته.

**باوېړے** :-(با+ وِي + ړے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : باوېړي] د مرض بيا راتلل ، بابېړے ، بئېړے.

**باوسير** :-(با+ وِي+سيْ+ر) [پ ، اس ، مذ] يو موذي مرض ، بواسير ، بائېسير.

**باهر** :-(با+ هـ+ رْ) [پ ، اس] و ــــ بهر

**باهمت** :-(با+ هِ + مَ+ تْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، (مؤ ،وا : باهمته ، ج : باهمتي)] همت ناک ، همتي ، د همت خاوند.

**باهمي** :-(با+ ه + مِيْ) [فا] يو تربله په خپلو کښې.

**باهو** :-(با+ هُ+وْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : باهوګان] و ــ باوُو.

**سلطان باهو** :-(سُ+لْ+ طَا + نْ+ با + هو) [اس ، معرفه ، مذ] يو مشهور صوفي بزرګ چې په پنجاب کښې ئې مزار دے.

**بائے** :-(فا) د ''ب'' ټکي نوم . په فارسي کښې د حروف تهجي د دوېم توري نوم . بې (ب).

**بائے فارسي** :-(فا) د دريو ټکو واله بې (پ)

**بائے معاهده** :-(فا) د يو ټکي واله بې (ب)

**بائي** :-(با+ ئي) [اف : پ (قاموس) مذ] بېلات ، بائيلودنه.

**ــــ کول** :-(اص) بائيلودل ، لارول ، بائلل.

**بائي** :-(با+ئيْ) [پ ، ه : بهائي ، اس ، مذ ، وا] (۱) ورور ، رور (۲)عموماً د چاهمزولي د مخاطب کولو په وخت وئيلے کېږي.

**بائي بند** :-(با+ئي + ب+ نْ+ د) [پ (عا) اس ، مذ ، ج : بائي بندان] ملګرے ، يار ،اشنا ، مالتي ، د چم ګاونډ سړے ، ښو بدو کښې شريک سړے.

**بائي بندي** :-(بائي + بَ+ نْ+ دِيْ) [پ (عا) اس ، مؤ] دوستي ، يارانه ، اشنائي، ملګرتيا ، ښو بدو کښې شريک والے ، ورورولي ، خپلوي ، په ښهٔ بده کښې شريکوالے.

**بائي جان** :-(بائي+جا + نْ) [پ ، اس ، مذ] ورور ته د مينې نوم ، يو غېر سړي ته چې نوم ئې نهٔ وي معلوم هم بائي جان وئيلے شي همزولي دوست ته هم د مينې نه وائي.'' بائي جانه ! دا کار به داسې کوؤ ''.

**بائي خان** :-(بائي + خا+ ن) [پ ، اس معرفه و مذ] (۱) د يو کلي نوم (۲) د يو خېل نوم (۳) د يو شاعر نوم (۴) يو عام نوم.

**بائي خېل** :-(بائي + خې + ل) [پ ، اس معرفه] د يو ټپې ياخېل نوم

**روربائي** :- عزيز ، تربور ، يار اشنا ، همزولے.

**بايدهٔ** :- (با+ ئي + دهٔ) [پ ، مؤ] پکار ، مناسب ، په ځاے ، د دود دستور مطابق ، بايد.

**رود بايدهٔ کول** :-(اف) اص . د وادهٔ په موقعه دود دستور کول ، مناسب دود دستور پوره کول.

**بائېزي** :-(با+ ئي + زِيْ) [پ ، اس ، مذ] د پښتنو د يوې ټپې نوم.

**بايزيد** :-(با+ يَ+زِي +دْ) [ع ، اس معر، مذ ،وا] (۱) د مسلمانانو يو عام نوم (۲) د روښاني تحريک باني ،پير روشان بن عبدالله انصاري (۳) مشهور ولي چې مقبره ئې په بسطام کښې ده.بايزيد بسطامي.

**بائېسر** :-(با+ ئي + سِ + رْ) [پ (ظفر) اس ، مذ] باوېسر ، بواسير ، بائېسير ، يو موذي مرض.

**بائيسکل** :-(بـائي + س+ کَ + لْ) [انګ (Bicycle) اس ، مذ ، وا ، ج: بائيسکلونه] سائيکل ، د دوؤ پايو د سورلۍ مشين ، جولاګاډے.

**بائيسکوپ** :-(با+ ئي+سْ+کو+ پْ) [انګ ، اس ، مذ] (۱) سنيما ، فلمي تماشه، فلم ، ناټک (۲) د سنيما مکان ، عمارت يا هال.

**بائېسير** :-(بائي + سي + رْ) [پ (سو) اس ، مذ] و ــــ بائېسر لکه'' د خولې بائېسير ئې زيات دي ''.

**بائيکاټ** :-(با+ ئي + کا+ ټْ) [انګ ، اس ، مذ] (۱) تعلق پرېښودل، ښه بده پرېښول ، د غم ښادۍ نه بهر کول ، چا سره ورکړه راکړه بندول ، يو سړے د خپلې ډلې نه بيلول ، يو سړي سره پره جنبه نهٔ ساتل (۲) د څهٔ څيز يا د څهٔ کار نه په اتفاق يا جمع انکاري کېدل ، قطع تعلق ، عدم تعاون ، ترک موالات

**بايکړ** :-(با+ يْ+ کَ+ ړْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] يوه اونه چې ترخه وي او مسواک ترې نه جوړېږي.پلېونه ، پلمن.

**بايکړ** :-(با+يْ+کَ+ ړ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بايکړونه] و ــــ بايکړ

**بائيلات** :-(با+ ئي + لا+ تْ) [پ ، اس ، مذ] بائي ، بائيلودنه ، نقصان ، بائيلنه، بائيلل ، پرېدل ، پرې کېدل.

**ــــ کول** :-(مص مت) بائيلودل،بائيلل ، نقصان کول ،بائي کول ،پرېدل ، پرې کېدل.

**بائيلل** :-(با + ئي + لَ+ لْ) [پ ، مص مت] بائي کول ، بائيلودل ، نقصان کول.

بلندي مې د کوهسار په پستۍ بائله
راغلم زهٔ لکه سېلاب ودې صحرا ته (کاظم خان)

**بايللے** :- با + يْ+ لَ+لے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : بايللي (مؤ : بايللي) ] بائي شوے ، بائلودلے ، نقصان شوے.

**بايلنګ** :-(با+ يْ+ لَ+ نْ+ ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ــ بائلل.

**بايلنه** :-(با+ يَ+ لْ+ نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] و ــ بايلات.

**بائيلودل** :-(ب + يْ+ لو + د + لْ) [پ مص ، مت] و ــ بائيلل.

**بائيلودلے** :-(با+ يْ+لو + دْ+لَے) [پ ، مف،مذ ، وا ، ج : بائيلودلي]و ــ بائيللے.

**بائيلونکے** :-(با+ يْ+ لُو + نْ+ کَے) [پ ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بائيلونکي] (۱) بائي کونکے ، نقصان کوونکے ، هغه سړے چې څهٔ بائيلي ، (۲) څهٔ څيز چې بائيللے شي ، بائيلودونکے.

**بائيلوول** :-(با+يْ+ لو + ول) [اف : پ (قاموس) مص مت] په بل چا بائيلل.

**بائيلولے** :-(با+ يْ+ لو+وُ+ لے) [اف : پ (قاموس) مف ،مذ ، وا ،ج: بائيلوولي] و ــــ بائيللے.

**بائيلوونکے** :-(با+يْ+ لو + وُو + نْ+ کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بائيلوونکي] و ــــ بائيلوونکے.

**بائيلوونه**:-(با+ يْ+ لو + و + نه) [اف : پ (قاموس) حمص] و ــ بايلنه.

**بائيوال** :-(با+ئيْ + وا + لْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بائيوالان] (۱) شريک ، چريکار ، مزدور (۲) په کاروبار کښې ملګرے.

**ببر** :-(بَ + بَ+ رْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، ج : ببران] هغه امزرے چې په غاړه باندې لوے لوے وېښتهٔ وي.

**ببر** :-(بْ + بْ+ رْ) [پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا : ببره ، ج : ببرې) ] (۱) خور وور ، ګڼ وېښتهٔ ، ګډ وډ وېښتهٔ ، چې ږمنځ په کښې نهٔ وي وهلې شوې (۲) په غصه کښې ، حملې ته تيار ، قهرجن (۳) د صدبر ګل (۴) د امزري يو قسم چې په څټ ئې لوے لوے وېښتهٔ وي (۵) هر هغه ځناور چې لوے لوے ګُور وېښتهٔ پرې باندې وي لکه ببر سپے ، ببر اوښ ، ببر مېلو (۲) د سړو نوم.

**ــــ کېدل** :-(اف) اص (۱) پرېشان کېدل ، ګډ وډ کېدل ، خور وور کېدل (۲) په قهر کېدل ، په غضب کېدل ، حملې ته تيارېدل ببرېدل ، راپارېدل ، بُغ کېدل.

**ببر ړیرے** :-(بَبر+گيِ+رَے یا ژيِ+رَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : ببر ـ ړیري] هغه سرے چې د ړیرې وېښتهٔ ئې خوارهٔ وارهٔ او گډ وډ وي چې ړیره ئې گنه او پرېشانه وي ـ ببر ړیرے ، پرېشانه حال ـ

**ببر ستنے** :-(بَبر+سْ+ت+نَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : ببر ستني] د انگرېزي ټوپکونو یو قسم ـ

**ببرسرے** :-(بَبر+س+رَے) [پ ، اص ، ص ، مذ ، وا ، ج : ببر سري] هغه سرے چې د سر وېښتهٔ ئې خوارهٔ وراهٔ وي ـ پرېشانه حال ، گډ وډ ـ

**ببرسړے** :-(بَبر+سَ+ړَے) [پ ، (ب ، خ) اس ، ص ، مذ ، وا] زیږ سړے ، تکړه سړے ، شاه زلمے ـ

**ببر غوړے** :-(بَبر+غْ+وَ+گَے/ ژَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : ببر غوړي] (۱) غوړین ټوپک ، بُوړے یوؤلس ډزے ټوپک ، ۳۰۳ ټوپک (۲) ب ـ خ : هغه څوک چې په غوړونو ئې وېښتهٔ وي (۳) صوابي : هغه څوک چې غوړونه ئې لوے وي ـ

**جنگ ببر** :-(اص (سو) مذ) جگړ مار ، جگړالو سړے ، قهرندونکے ، جگړن ، جگړي ـ

**جنگ ببره** :-(سو) اص ، مؤ ـ جگړماره ، قهرندوکې ښځه ، د جنگ ببر تانیث ـ

**ببرو** :-(بَ+بْ+رُو) [پ (خل عا) اس ، مذ] بدشکله سړے ، په خرش پرش کښې سړے ، د تریو تندي خاوند ـ دځوړند شونډو او د ببرو وروځو خاوند ـ

**ببروزه** :-(بَ+بْ+رو+زه) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : ببروزې] یو قسم وابښهٔ چې مال ئې خوري ـ

**ببرول** :-(بَ+بْ+رْ+وْ+ل) [پ ، مص مت] (۱) وېښتهٔ ، پرېشانه کول ، گډ وډ کول ، نېغ اودرول ، وېښتهٔ خورول (۲) څوک غصه کول ، څوک لمسول (۳) د شکوڼ غشي نېغول ـ

**ببرونه** :-(بَ+بْ+رْ+و+ن) [پ ، حمص] د بدن وېښتهٔ نېغ اودرونه ، وېښتهٔ خورونه ـ

**ببروونکے** :-(بَ+بْ+ر+وُوْ+نْ+کَے) [پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : ببروونکي] د بدن وېښتهٔ خوروونکے ، وېښتهٔ نېغ اودروونکے

**ببره** :-(بَ+بَ+رَه) [پ ، اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : ببرې] د ببر مؤنث ، متل :- "چرگه چې ببره شي لابده ځناوره شي"

**ببرے** :-(بَ+بْ+رَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : ببري ببریان ، (مؤ ، وا : ببرۍ ، ج : ببریانې)] یو قسم مشهور ښکاري سپے چې وېښتهٔ ئې اوږدهٔ وي

**ببرے** :-(بَ+بْ+رے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : ببري] کشمالو ، نیازبُو ، رېحان ، نازبُو ، کشمالے ـ

**ببري بانډه** :-(بَ+بَ+رِيْ+با+نْ+ډَه) [پ ، اس ، معرفه ، مؤ] په کوهاټ ضلع کښې د یو کلي نوم ـ

**ببرېدل** :-(بَ+بْ+رې+د+لْ) چ اف : پ (قاموس) مص لا] (۱) په بدن وېښتهٔ نېغ اودرېدل (۲) د اوږدو او گڼو وېښتو خاوند کېدل اص : قهرجن کېدل ، سوخت اخستل ، غصه کېدل ، جنگ ته تیارېدل ـ

**ببرېدنگ** :-(بَ+بْ+رې+دَ+نْ+گ) [اف : پ (قاموس ، حمص] و ـــ ببرېدنه ـ

**ببرېدنه** :-(بَ+بْ+رې+د+نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] د وېښتو خاوند کېدل ، په بدن وېښتهٔ نېغ اودرېدل ، اص : قهر او غصه کونه ، سوختېدنه ـ

**ببرېدُونکے** :-(بَ+بْ+رې+دُو+نْ+کَے) [پ ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : ببرېدونکي] لُغ : د وېښتو خاوند کېدونکے ، اص : غصه کېدونکے ، قهرېدونکے ، سوختېدونکے ـ

**ببري سترگې** :-(بَ+بَ+رې+سْ+تَ+رْ+گې) [پ ، اس ، ص ، مؤ ، ج] (۱) غټې سترگې ، ښکلې سترگې (۲) غصه ناکې سترگې ، د غصې نه برندې کړې سترگې ـ

**ببغے** :-(بَ+بَ+غَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : ببغي] غریب ، مفلس ، بې وسه ، نادار ه ـ

**ببو** :-(بَ+بو) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د اسونو یو مخصوص مرض دے ـ

**ـــــ وهل** :-(اف) اص ـ د اس د ببو په بیمارۍ اخته کېدل ، په اس د ببو مرض لگېدل ، اص : د یو سړي سُست کېدل ـ

**ببو** :-(بْ+بو) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : ببوگانې] خور ، مور ، ترور ، خوابښې ، مشرې او عزتمنې ښځې ته د خطاب کولو ټکے اگو (گن)

**ببوتتي** :-(بَ+بو+تَ+تې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : ببوتتې] ملاچرگک ، گوډې چرگ ، بُوکې ـ

**ببوجان** :-(بَ+بو+جا+ن) [پ ، اس ، معر ، مؤ] (۱) یوه مشهوره ښځه (۲) د پښتنو د عوامي سندرو یو کردار ، مشهوره بتېربازه

**ببوزے** :-(بَ+بو+زے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : ببوزي] (۱) باد پکے ، د لاسو پکے (۲) یو قسم مارغهٔ چې مهۍ خوري (۳) (ظفر) پرپرکے ـ

**ببوغه** :-(بَ+بُوْ+غَه) [پ (گن) اس ، مؤ ، وا ، ج : ببوغې] ببوغے ، گوگوشتو ، بابغه

**ببوغے** :-(بَ+بَوْ+غَے) [پ (ظفر) اس ، مذ ، وا ، ج : ببوغي] و ـ ببوغه ـ

**ببوکے** :-(بَ+بُوْ+کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : ببوکي] و ـ ببوتتي ـ

**ببۍ** :-(بَ+بۍ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : ببۍ گانې] مشرې خور ، ترور یا بلې مشورې ښځې دپاره د مینې او عزت یو ټکے ، ببو

**ببے** :-(بَ+بَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو مارغهٔ چې چنیجې خوري ـ

**ببېزنه** :-(بَ+بې+زَ+نه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] شبېره تبه سرلړلې تبه ، یخنه تبه ـ

**ببېښې** :-(بَ+بې+خې یا بَ+بې+شې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــ باوبسیر ـ

**ببېښي** :-(بَ+بې+خِ+يْ+یا بَ+بې+شِ+يْ) [اف : پ (قاموس) ص] باوبسیري ، بواسیري ـ

**بَت** :-(بَ+تْ) [اف : په (قاموس) اس ، مذ ، وا] د کاڼو دېوال ، لختے ، خوړ وغېره ـ

**بَت** :-(بَ+تْ) [پ (ظفر) اس ، مذ ، وا ، ج : بتونه] مایه ، کلف

**ـــــ کول** :-(ظفر) لُغ : کپړې ته مایه ورکول ، نېغ اُودرول ، اص : (۱) خبره ښائسته کول ، (۲) لمسون کول ـ

**بُت** :-(بُ+تْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بُتان] (۱) بوت ، د کاڼي نه جوړه شوې انساني جُثه (۲) صنم ، معشوقه ،

دا ځهٔ بُت دے زما ربه
چې هم بُت دے هم بشر (رحمان)

(۳) د کافرانو معبود ، د مشرکانو مسجود ، (۴) خاموشه ، پټه خُولهٔ ، (۵) صوابي ـ په ارهټ کښې د ډول دپاسه لوے لرگے (کانجڼ) چې په کومو دېوالونو پروت وي هغې دېوالونو ته بُتان وائي ـ بوتکے ، (۶) دسکې هغه طرف چې څبره پرې باندې وي (۷) یو بالښتے چې د جوارۍ دپاره ئې په کُنجکو ولي (۸) د کوډ گرو ښځو هغه گوډاگے چې ستنې یا ازغي په کښې ټومبلي شوي وي او په خاص ځاے کښې ئې ښخ کړے وي ـ

**بَتاره** :-(بَ+تَا+ره) [پ (سو) اس ، مؤ] گُوتاوه ، گُتاوه ، وانډه ، گوت ، اړهٔ ـ

**بُت بټ** :-(بُت +بَ +ټْ) [پ ، اس ، معر ، مذ] په سوات کښې یو ځاے۔

**بُـت پرسـت** :-(بُـت + پَ + رَ + سْ + تْ) [فـا ، اس ، ص، مـذ ، وا ، ج : بـت پرستان (مؤ ، وا: بُت پرسته ، ج : بُت پرستې] (۱) بُوت پرست ، د بتـانو پرستار ، د بتـانو عبـادت کوونکے ، بُـت تـه خداے ویـونکے ، بُـت تـه سجده کوونکے ، مشرک

ځۀ وه بُت وته سجده ځۀ ودنیا ته
بُت پرست دے پرستار د دې دنیا (رحمان)

(۲) عاشق۔

**بُت پرستي** :-(بُت + پَ + رَ + سْ + تيْ) [فـا ، اس ، مؤ] (۱) د بُت عبادت کول ، بُت تـه سـجده لګول ، بُت خپـل معبود ګڼل ، شرک کول (۲) عاشـقي کول ، چا سره محبت کول۔

**بُت تـراش** :-(بُت + تَ + را + شْ)[فـا ، اس ، فـاع ، مـذ ] د بتـانو جوړونکے ، بُت ساز ، د سنګتراشۍ ماهر ، د بُت تراشۍ استاد ، مصور۔

**بُت خاک** -(بُت+خا+ک) [پ،اس معر ، مذ] په افغانستان کښې یو ځاے۔

**بُت خانه** :-(بُت + خا + نَه) [فا ، اس ، ظرف ، مؤ ، وا ، ج : بُت خانې] د بُتـانو د ایښولو ځاے ، د مشرکانو د عبادت ځاے ، دهرمسال

بُت خانې وته ئې مخ وي
ومسجـد وتــه یــې شا (رحمان)

**بَتخـک** :-(بَ + تْ + خَ + کْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بتخکـان] الي دو دو ، یـو قسم خړ رنګه مارغـۀ چې اکثـر د غنمـو پـه فصـل کښې پیداکېږي او ځینې خلک پرې د مرز ګُمان کوي۔

**بَتو** :-(بَ + تَ + رْ) [پ ، فا: بد تر ، پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا: بتره ، ج: بترې) ] ډېر بد ، زیات بد ، ډېر خراب ، بې کاره ، بدتر۔

حیوانات هم په تسبیح د خداے مشغول وي
تـۀ انســـــان ئــې له انسانه بتر مه شه (رحمان)

**بَتري** :-(بَ + تَ + ريْ) [پ ، اس ، مؤ] خرابي ، بدتري ، ابتري۔

**بُت ساز** :-(بُت+ سا + زْ) [فا ،اس، فاع،وا ،ج :بُت سازان] و - بُت تراش۔

**بُـت شـکن** :-(بُـت + شِ + کَ + نْ) [فـا ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بُـت شکنان] لُغ : بُت ماتوونکے ۔اص : سلطان محمود غزنوي په تـاریخ کښې په دې نوم یادېږي ـ ځکه چې د ډېر دولت په مقابله کښې ئې د سومنات بُت ټوټې ټوټې کړے ؤ۔

**بَتک** :-(بَ + تَ + کْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بتکونـه] پتـک ، پـتکے ، بتکے ، د سفر دپاره د اوبـو اچولـو یـو خـاورین لوښے چې پـه غـاړه یـا ترخ کښې اوېزان وي۔

بتک ډک د خپلو اوښکو درسره وړه
یوه شـــــپه به دې مقام په یوه تل شي (سکندر خان ختک)

**بُت کده** :-(بُت+کَ+دَه) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج: بُت کدې] و ـ بُت خانه۔

**بُت کړه** :-(بُت+کَ+ړَه) [پ، اس معر ، مؤ ، وا] په سوات کښې د اثار قدیمه یو ځاے۔

**بَتکه** :-(بْ + تَ + که) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] ځنګلي بطه بَته

**بَتکے** :-(بَ + تَ + کَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: بتکي] و ـ بتک۔

**بُتکے** :-(بُ + تْ + کَے) [پ (خل) اس ، مـذ ، وا] یـو وړوکے دېوال، د ختـو یو وړوکے ټاپو ، د کوټې ور سره جُخت یـو وړوکے لـرګے چې ځینې سامان ورسره زوړندولے شي۔

**بتکي** :-(بْ + تْ + کي) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] ډېرۍ ، کـوړکۍ ، ښکر ، دام۔

**بَتلـه** :-(بَ + تْ + لـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بتلې] هغـه چرګه چې په رومبي ځل په اګو راغلې وي۔

**بِتلي** :-(بِ + تْ + ل + يْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] د لرګـي کُوړکۍ چې اکثر په کښې زرکې نیوے شي۔

**بَتـول** :-(بَ + تُـو + لْ) [ع،اس،مـؤ] هـره پاکدامنـه ښځـلـه ـاص : بـي بي فاطمه رض د رسول کریم صلی الله علیه وسلم لُور او د حضرت علي کرم الله وجهه ښځه۔

**بُته** :-(بُ + تَ +هْ) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] یو قسم د ربښمو کار

**بَته** :-(بَ +ته) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بتې] و ـ بتکه

**بَتـي** :-(بَ + تـيْ) [اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ] (۱) بـت ، هغـه نرم اوړۀ چې جولاګان ئې تنسې له ورکوي ۔(۲) اوربدلې ځربه مزکه ، ناکرلې فصلي مزکه ، (۳) ملامت ، پښېمانه

**بَتـی** :-(بَ + ت + ی) [اف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ] بـاتـی ، شـمع ، ډیـوه ، لالټین او داسې نور رڼا کوونکي څیزونه۔

**بَټ** :-(بَ+ټْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بټُونه] (۱) د خښتو پخولو بټۍ (۲) د نینو وریتولو کړهے ، دانګې (ګن)

پکښې زړونه د عــالم دي چې ورتـــېږي
بېلتون اور پسې کوي اسمان یې بټ دے (سکندر خان)

(۳) یو قسم لویے تبخے یا تبغنه چې پلنې پلنې او نرمې ډوډۍ پرې پخېږي ـ(۴) انګ : د ټوپک کُنداغ (۵) اص : ګرم و سوځوُونکے۔

**ـــــ تودول** :- اص۔ د نینو کولو دپاره بَټ ګرمول ، بټ لاندې اور ورکول۔

**ـــــ ګرمول** :- اص۔و ـــــ بټ تودول۔

**بټا** :-(ب+ټا) [پ (سو) اس ، مذ ، وا، (مؤ ، وا: بټۍ) ] پـه یـوه سترګه هغـه ړوند چې د سترګې ګاټے ئې بهر راوتے وي۔

**بَټاکوه** :-(بَ + ټا + کُ + ړَه) [اسم ، معرفـه] تحصیل صـوابۍ کښې د اباسین په غاړه د یو پخواني کلي نوم۔

**بَټ خېله** :-(بَټ+ خې + لَـه) [پ ، اس ، معرفه] ملاکنډ ایجنسۍ کښې د یـو مشهور کلي نوم۔

**بَټ سترګي** :-(بَټْ+ سْ + ت + ر+ ګي) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص، مـذ ، وا، ج : بټ سترګي] بُغ سترګې ، هغه سړے چې سترګې ئې بهرتـه راوتي وي۔ ټغ سترګې۔

**بَـټ سـوره** :-(بَټ+سـو+ره) [اف ، پ (قـاموس) اس ، ص،مـذ ،وا، ج : بـټ سوري) شاله اوړۀ،غټ اوړۀ،هغه اوړۀ چې ډېر مبده شوي نۀ وي۔

**بَټ سورے** :-(بَټْ + سُو + رے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] د درمـن پـاکولو نه پس ناټکبدلې وړې یا دروزه ګُنډے۔

**بَټـک** :-(بَ + ټَ + کْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، (مـؤ ، وا: بټکـه ، ج : بټکې) ] و ـــــ بټ سترګي۔

**بَټل** :-(بَ+ټَ+ لْ) [پ ، اس ، مذ ، وا] په هزاره ضلعې کښې یو کلے

**بَټـل** :-(بَ + ټَ + لْ) [پ ، اس ، مـذ ،وا ، ج : بټلُونـه] د اوبـو یـا د لاونړ لوښے ، خاورینه لویه پیاله ، تالے ، شاکاسه۔

**بَټله** :-(بَ + ټَ + له) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هغـه چرګـه چې تـازه پـه اګو راغلې وي۔بتله

**بَټلے** :-(بَ +ټْ+ لَے) [پ (ګن) اس ، مذ ، وا ، ج : بټلي] د خاؤرو کندولے۔

**بَټن** :-(بَ + ټَ + نْ) [انګ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بټنونـه] بټنړ ، ګرۍ ـ د قمیص یا د کوټ تنۍ چې د اډوکي یا د سیپۍ نه جوړې شوې وي۔

**بَټنې** :-(بَ + ټَ + نِْ) [پ (عا)انګ ، بټن،اس،مذ ، وا ، ج : بټنې (مؤ، وا: بټهه)] و - بټن۔

**بَټهه** :-(بَ + ټَ + نه) [پ (عا) اس ، مؤ ، وا ، ج : بټهې] و ـــــ بټن۔

**بټنګ** :-(بَ+ټَ+نْ+ګ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بټنګان] د ناشپاتۍ په شان د پېښور يوه مشهوره مېوه.

**بټول** :-(بَ+ټ+و+ل) [اف : پ (قاموس) مص مت] د بزې نه د څرمنې ويستو په غرض د څرمنې څۀ حصه پرې کول ، څرمن شق کول.

**بټولے** :-(بَ+ټ+وَ+لے) [اف : پ (قاموس) مف مذ] د څرمن ايستو دپاره شق کړے شوے ، څيرې شوے.

**بټونه** :-(بَ+ټ+و+نه) [اف : پ (قاموس) حمص] د څرمن ايستلو په وخت د بزې څرمن د شق کولو عمل.

**بټوُونکے** :-(بَ+ټ+وُوْ+نْ+کے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بټوُونکي] د بزې څرمن ايستلو په وخت څرمن څيرې کوُونکے.

**بټوه** :-(بَ+ټْ+وه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بټوې ج د پيسو ايښودلو ورکوټې بخځکۍ ، کونځۍ ، کڅوړه.

**بټه** :-(بَ+ټَه) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ] د شولو نه په مولو ايستلې شوې غټې وريژې.

**بټه** :-(بَ+ټْه) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بټې] د نارينه ګوتې.

**بټي** :-(بَ+ټي) [پ ، اس ، مؤ ، ج : وا : بټه غېر مستعمل] د پوستکي نه ويستلې شوې اوربشې .صفا شوې او ټکېدلې اوربشې.

**بټۍ** :-(بَ+ټْ+ی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) د کلالانو پچه چې خاورين لوښي په کښې پخېږي .اوئ (ګن) (۲) د چوڼې جوړولو يا د خښتو پخولو لوے تنور يا پچه ، (۳) سو : په يوه سترګه داسې ړنده ښځه چې د سترګې ګاتے ئې بهر راوتے وي.

—— **اچول** :-(۱) په پټو کښې وړې وريتول ، دُومه اچول ، ترا ړه اچول ډا ړه اچول ، ډاډه اچول،ډازه اچول.

**بټۍ باندې کول** :-(اص) د دوبيانو د جامو وينځلو دپاره بټۍ خېژول

**بټۍ پخول** :-(اص) د خښتو پخولو دپاره بټۍ ته اور ورکول.

**بټي** :-(بَ+ټيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د اوربشو اوبه چې د تبې مريض له د حرارت دکمېدو دپاره ورکېږي.

**بټي بيابان** :-(بَ+ټي+بيا+با+نْ) [پ (ظفر) اس ، ص ، مذ] داسې مېره چې د تندې نه په کښې مرغۍ ړندېږي.خشکه مېره.

چې په بټي بيابان پروت د لوږې مړ وي
د هغـۀ تـــر ملا د زرو هميانۍ څۀ (يونس)

**بټي بېبان** :-(بَ+بِيْ+بي+با+نْ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ] و بټي بيابان.

**بټي کول** :-(خل) اص.سنډا د بار اچولو دپاره څملول.

**بټي کېدل** :-(خل) اص.د خاوند په اشاره د سنډا په مزکه څملاستل

**بټيارے** :-(بَ+ټْ+يا+رَے) [پ ، ه : بهټيارا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بټياري ، بټياران ، (مؤ اک بټيارۍ) ] (۱) هغه سړے چې بټ کوي ، بټ کوونکے ، نيني وريتوونکي ، بټ واله (۲) (خل) بهشتي ، ماشکي ، سقه.

**بټيارۍ** :-(بَ+ټْ+يا+رۍ) [پ ، ه بهټياري ، اس ، مؤ ، وا] ښځه بټيارۍ.

**بټېر** :-(بَ+ټي+رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بټيري ، بټېران] مرز ، بټېرے ، يو مارغۀ چې د جوارو او غنمو شين فصل کښې پېدا کېږي .خلق ئې د جنګولو دپاره ساتي او په جالونو ئې نيسي.

**بُڅ** :-(بُ+ځْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ،وا ،ج : بُڅان] د ختکي تخم يا زړے

**بچ** :-(بَ+ڄْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بچونه] (۱) هغه لوے او مضبوط لرګے چې د اُوبس د بار په ترلو کښې پکارېږي .(۲) د دوو ګزو نه اوږد کوتک.

**بچ** :-(بَ+ڄْ) [ه ، اس ، مذ] منډې ترړې ، کوښښ ، تکليف تېرول.

**بچ** :-(بَ+ڄْ) [اف : پ (قاموس) اس صوت ، مذ] د پيو د لوشلو اواز.

**بچ** :-(بَ+ڄْ) [پ (ب ، خ) ص] په لرګي کښې وهنو خوړلے ځاے.

**بجري** :-(بَ+ڄْ+رِيْ) [پ ، اس ، مؤ] و ـــ باجري.

**بجړ** :-(بَ+ڄ+ړ) [اف : پ (قاموس) اس ،مذ] نر ښځے ، ښځولے ، ايجړا.

**بجړ** :-(بَ+ڄَ+ړْ) [پ (خل) اس ، مذ] ګڼ خاندان ، د خاندان ګڼ خلک ، درنه کورنۍ ، لويه خپلولي.

**بُجړا** :-(بُ+ڄْ+ا) [اف : پ (قاموس) مذ ، مؤ] سُست ، بېکاره ، تيارخور.

**بُجړانګي** :-(بُ+ڄْ+ړا+نْ+ګيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] زړې او شلېدلې جامې.

**بُجلکه** :-(بُ+ڄْ+لَ+کَه) [اف : پ (قاموس) اس مؤ ، وا ، ج : بُجلکې] د پښې ګيټۍ ، شنګرې.

**بِجن** :-(بِ+ڄَ+نْ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، ج : (مؤ : وا : بجنه ، ج :بجنې] سپږې لرونکے ، هغه سړے چې په سر يا جامو کښې ئې سپږې وي.سپږن.

**بِجنتوب** :-(بِ+ڄْ+نْ+تو+بْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] بجن والے ، سپږې لرل.

**بِجه** :-(بِ+ڄَه) [اف : پ (قاموس) اص ، مؤ ، وا ، ج : بِجې] سپږه (د ماشومانو په ژبه).

**بجه** :-(بْ+ڄَه) [پ (ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج : بجې : ګونې ، يو قسم چينجے چې په غنمو کښې پېدا کېږي.

**بَجه** :-(بَ+ڄَه) [پ ،اس ، مؤ ، وا ، ج : بجې] د يو ګېنټې برابر دوخت مقدار ، اکثر د عدد نه روستو راځي.لکه : " يوه بجه ، دوه بجې ".

**بُجه** :-(بُ+ڄَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج :بُجې] په څۀ سُوري کښې کېږه ، وابنۀ يا څۀ داسې قسم څيز کښېښودل چې هغه سُورے پرې بند شي. بُوجه ، د بوتل يا د کوزې د کشکوړې بوجه ، ډاټ

**بَجی** :-(بَ+ڄْ+ئ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] تَے ، (د ماشومانو په ژبه)

**بجۍ څټه** :-(بْ+ڄ+ی+تُسْ+ټه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د اوبن د سر باري پنډوکے.

**بځن** :-(بَ+دْز+نْ) [اف : پ (قاموس) ص، مذ ، وا ، ج : (مؤ ، وا: بځنه ، ج : بځنې] (۱) مبنلے شوے ، پښو لاندې شوے ، (۲)غمجن ، خفه ، (۳) يرندونکے او بې زړۀ

يو څۀ پځن زړۀ يې راکړه مالــه
چې د ماوې د جهان د لبرې واړه (خوشحال)

—— **کېدل** :-(اف) اص .(۱) پښې لاندې مبنلے کېدل ، (۲) غمجن کېدل ، خفه کېدل (۳) بې زړۀ کېدل ، يرندونکے کېدل.

**بَڄ** :-(بَ+ڄْ) [پ (خل) اس ، مذ] ګڼ تېغونه ، د څۀ فصل يا د اونې ګڼ تېغونه راوتل ، ډېر زياتوب.

—— **اچول** :- اص .د يو چينجي يا ځناور زيات بچي راوړل ، لکه :" مچ په ګنده ځاے کښې بچ اچوي ".

—— **کېدل** :- اص .ځان ساتل ، ځان پټول ، په څۀ معامله کښې مخې ته نۀ ورتلل

—— **تباه کېدل** :-اص.د مونډه وتل.څۀ نخښه نۀ پاتې کېدل ، بالکل ختمېدل.

—— **راوتل** :-اص.د يو بوټي زرغونېدل ، بوزغلے راټوکېدل.

—— **سوځېدل** :-اص.د ګياه يا د يو بوټي تېغونه د ګرمۍ يا د تندې په وجه اوچېدل يا مړاوي کېدل.

**بچ** :-(بَ+چْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] حفاظت ، ساتنه.

**ـــــ خوړل** :- اص.د يو مصيبت يا واقعې نه په مشكله بچ كېدل.

**ـــــ راتلل** :- اص.صحيح سلامت راتلل، د مرګ نه بچ كېدل.

**ـــــ كول** :- اص .حفاظت كول ، روغ ساتل ، سلامت لرل ، ساتنه كول ، پاتې كول.

**ـــــ كېدل** :- اص.محفوظ كېدل ، سلامت پاتې كېدل ،

**ـــــ ګرځېدل** :- اص .د څۀ واقعې نه ځان بچ كول ، ځان ساتل ، د خطرې نه لرې لرې اوسېدل.

**بچاره** :-(بِ + چا + رَه) [فا ، بيچاره ، ص] بېكس ، غريب ، بې وسه ، بې يار و مددګار ، قابل رحم.

**بچالي** :-(بِ + چا + لِيْ) [پ (خل) اس ، مؤ وا ، ج : بچالۍ] د نرمۍ او پاكو پېنو ساتلو دپاره د اس تر پېنو لاندې اوچ وابښۀ يا نوره نرمه ګياه چې اس يا اسپه پرې په ارام ولاړ وي.داس بچاؤته.

**بچاؤ** :-(بَ + چا + و) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] حفاظت ، ساتنه ، نګهباني.

**ـــــ كول** :- اص.و ـــــ بچ كول.

**ـــــ كېدل** :- اص.حفاظت كېدل ، ساتنه كېدل.

**بچاوڼ** :-(بِ + چا + وْ + ڼه) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بچاؤڼونه] لويه درۍ ،

**بچاوڼه** :-(بِ + چا + ؤ + ڼَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بچاوڼې] درې او بستره ، ښۀ بستره ، ښۀ اسباب.

**بچاوول** :-(بَ + چا + وْ + و + ل) [اف : پ (قاموس) مص مت] حفاظت كول ، ساتنه كول ، پناه وركول.

**بچاوونه** :-(بَ + چا + و + و + نه) [اف ، پ (قاموس) حمص] بچ كونه ، ساتنه ، حفاظت كونه.

**بچاوونكے** :-(بَ + چا + وَ + وُو + نْ + كے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بچاووُنكي ، (مؤ : بچاوونكې)] حفاظت كوونكے ، ساتونكے ، پناه وركوونكے.

**بچاوے** :-(بَ + چا + وَ + ے) [پ ،اس ، مذ] بچ كېدنه ، د څۀ مصيبت نه خلاصېدنه

**بچاوېدل** :-(بَ + چا + وې + د + ل) [اف : پ (قاموس) مص لا] بچ كېدل ، حفاظت كېدل ،

**بچاوېدونكے** :-(بَ + چا + وې + دُو + نْ + كے) [اف : پ (قاموس) فا ، مذ ، وا ، ج : بچاوېدونكي ، (مؤ : بچاوېدونكې)] بچ كېدونكے ، پاتې كېدونكے.

**بچت** :-(بَ + چَ + تْ) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : بچتُونه] پاتې ، ګټه ، فائده ، زياتوب ، نفع ، د كور حيله ، د آمدنۍ يوه حصه كور كښې ساتل.

**ـــــ كول** :- مص مت ، پاتې كول ،د ښې بدې ورځې دپاره جمع كول ، ذخيره كول ، د كور حيله كول.

**ـــــ كېدل** :- مص لا.پاتې كېدل ، ګټه كېدل ، فائده كېدل.

**بچړي** :-(بَ + چَ + ړي) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بچړي] (۱) د چابک د تسمې سر ته ځوړند ے ، د غوا د لكۍ د ويښتو ځوړند ے ، بچكړے.

**بُچړے** :-(بُ + چْ + ړے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بُچړي] كُوچے ، كوچنے ، د خر بچے.

**بچړے** :-(ب + چْ + ړَے) [پ ، اس ، مذ ،وا ، ج : بچړي] بچے ، زوے ، اولاد ، عام طور سره د حېوان د بچي دپاره استعمالېږي.

ستا د سترګو د كجل لـكۍ افت شوه
ترافسون لاندې بچړے د سيه مار كړه (كاظم خان)

**بچـك** :-(بَ + چَ + كْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بچګان] د مير آب ياژرنده ګري سړے.

**بچك** :-(بَ + چَ + كْ) [اف : پ (قاموس) ، اس مذ] بچكک ، د تماكو پاتې شوې بېكاره چُوره ، بچكي.

**بچكړے** :-(بَ + چْ + كَ + ړے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بچكړي] بچړي ، د چابک د تسمې سر ته ځوړند ے يا ددې قسم نور ځُوړندې.

**بچكي** :-(بَ + چْ + كِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــ بچك

**بچكركے** :-(بَ + چْ + ک + رْ + كَے) [پ (ظفر) اس ، مذ ، وا ، ج : بچكركي] د مرغو نيولو په لټ كښې يو وركوټے نرے تيلے چې په يوه خاص طريقه په مزي كښې انډول وي.

**بچګانه** :-(بَ + چ + ګا + نَه) [فا ، ص] (۱) د ماشومانو سره تعلق لرونكے څيز (۲) د ماشومانو په شان ، د وړو په څېر.

**بچو** :-(بَ + چُوْ) [پ ، اس ،مذ ، وا] (۱) د بچه نه اسم تصغير چې د مينې په دود ماشوم ته وئيلے شي .(۲) د دپكې په طور هم دا ټكے وئيلے شي لكه :"ښۀ ده بچو ! ګورو به"

**بچـوړي** :-(بَ + چُـوْ + ړِ + يْ) [اف : پ (قاموس) اس ، جمع] لـوئې اوږدې جرابې

**بچـوړے** :-(بَ + چُو + ړے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بچـوړي ، (مؤ : بچوړې)] (۱) د مارغۀ يا د حېوان يا د بل ځناور وړوكے بچے (۲) د ډېرې مينې په وجه ماشوم ته هم وائي.

**بچـول** :-(بَ + چَ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] بچ كول ، د څۀ مصيبت نه خلاصول ، ژغورل.

**بچونګ** :-(بَ+چَ+وَ+نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] بچونه ، بچ كونه

**بچونه** :-(بَ + چَ + و + نه) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ بچونګ

**بچـونګړے** :-(بَ + چُوْ + نْ + ګْ + ړَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بچونګړي] د انسان يا د حېوان وړوكے بچے ، بچونګړا(ظفر)

**بچوونكے** :-(بَ + چَ + وُوْ + نْ + كَے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : بچـوُونكي (مـؤ : بچـوونكې)] بـچ كـوُونكے ، سـاتونكے ، حفاظت كوُونكے.

**بچوے** :-(بَ + چَ + وے) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بچوي] پېوے ، پيكے ، د ويښتو ترلو فيته ،

**بچه** :-(بَ + چَه) [اف : پ (قاموس) اس ، صوت] د بزې شړلو دپاره يو مهمل غږ ، اچه ، چچه.

**بچـه دانـي** :-(بچـه + دا + نـيْ) [فـا ، اس ، مؤ] د مـور خېټـه كښـې د اولاد د پرورش ځاے ، رحم.

**بچه ګوته** :-(بَ + چَ + ګ + و + ته) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] وزيره ګوته ، د كچې ګوتې او د مېنځې ګوتې تر مېنځه ګوته.

**بچه مړے** :-(بَچه +م + ړَے) [پ ، ص ح د ښېرې په ډول استعمالېږي لكه : "فلانے بچه مړے شه" يعني د فلاني بچے يا زوے مړ شه

**بچـی** :-(بَ + چ + ی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) د دېـوال د مضبوطوالي دپاره پشتې (۲) ماشومه جينۍ ، لُور (۳) د غوا مېښې وړوكے سخے يا كټے (۴) چرګه چې په اګو شوې نۀ وي .

**بچے** :-(بَ + چَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بچي يا بچيان] (۱) وړوكے ماشوم ، د مينې لـه كبله هر يـو ماشوم تـه وائي .(۲) وړوكے ځناور يـا ځـاروے وغېره .

**ـــــ حلالول** :-(اص) چرګوټے ذبح كول.

**ـــــ د تې نه پرېكول** :-(اص) د يو خاص ميعادنه پس په بچي باندې د

مور پئی بندول

**ــــ راوړل** :-(اص) لنگېدل ، بچے پیدا کول ، بچے زیږېدل۔

**ــــ سپینول** :-(اص) د حلالولو نه پس د چرگوټي نه بنې لرې کول یا څرمن ویستل۔

**ــــ سُور کول** :-(اص) چرگ په غوړو کښې وریتول۔

**ــــ سینې ته اچول**:-(اص) بچي له تے ورکول،بچے د سینې په پیو مړول۔

**ــــ گذارول**:- اص۔د میعاد نه وړومبے کچه بچے پیدا کېدل ، زیان کېدل۔

**ــــ لگېدل** :-(اص) د غـوا میینښې د لنگېدو نـه وړومبے پـه خېټـه کښې بچے معلومول ، په دې غرض چې دا بلاربه ده که اوچه ده۔

**ــــ ورکول**:-(اص) چاته د دروغو څۀ امېد ورکول ، څۀ په ایله ساتل

**ــــ ویستل** :-(اص) په یو لـېږ دېږ کښې ځان دپاره په چالاکۍ څۀ پیسې بچ کول ، پیسې خوړل۔

**بچي شړل** :-(اص) د غټېدو نه پس د چرگوټو د مور نه جدا کېدل۔

**بچي له تے ورکول** :-(اص) و ــــ بچے سینې ته اچول۔

**بچے بچے** :-(بَ + چے + بَ + چے) [پ ، اس صوت] د گډو بـزو رابللو دپاره مهمل غږ ۔

**بُچے** :-(بُ+ چَے) [پ ، ص ، مذ] لُغ : چې غوړونه ئې پرې کړي وي۔بُوچے ، اص : د سپکې جامې اغوستونکي ته هم وائي ۔لکه : "فلانے لکه د بُچي سپي لغړ دے"

**بچېدل** :-(بَ + چې + د + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] بچ کېدل ، د خطرې نه وتل ، خلاصے موندل۔

**بچېدلے** :-(بَ +چې+د +لَے) [اف : پ (قاموس) مف ،مذ ، وا] بچ شوے۔

**بچېدنگ** :-(بَ + چې + دَ + نْ + گ) [اف : پ (قاموس) حمص] بچېدنـه ، بـچ کېدنه ، نجات موندنه ،

**بچېدنه** :-(بَ +چې+د+ نه) [اف : پ (قاموس) حمص] و ــ بچېدنگ

**بچېدونکے** :-(بَ + چې + دُو + نْ + کَے) [اف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : بچېدونکي (مؤ : بچېدونکې) ] بچ کېدونکے ، د څۀ مصیبت نـه خلاصېدونکے ، نجات یا خلاصے موندونکے۔

**بچېدۀ** :-(بَ + چې + دۀ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ــ بچېدنه

**بچېرے** :-(بَ + چې + رذَے) [پ (خل) اس ، مذ ، وا ، ج : بچېري ، (مؤ : بچېرۍ) ] د اس بیانې۔

**بچي ماره** :-(اص) هغـه ښـځه چې بغیـر نکـاح ناجائز بچي راوړي او مړۀ کوي ئې۔

**بُخځگۍ** :-(بُ + تْس + خَ + گَ + ی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] وړه کڅوړه چې ښځې پکښې د گنډلو سامان ستن تار وغیره کېږدي بُخچگۍ ، بُخچې ، بُخچکۍ۔

**بُخځه** :-(بُ + تْس + خه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بُخځې] لویه کڅوړه چې پکښې جامې وغیره کېږدي۔بُخچه ، بُقچه۔

**بځرکے** :-(بَ + تْس + رْ + کے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: بځرکي] (۱) د اور بځرے ، وړوکے انگار ، سپېکے ، (۲) د هر یو څیز لږه حصه ، پوټسکے ، ذره ، لږ څیز ،ختوزه،توخرکه۔

**بځرے** :-(بَ + تس + رے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بځري] و ــ بځرکے

**داور بځرے کېدل** :-(اف) اص : ډېر تېز او چالاکه کېدل ، پـه کـار کولـو کښې زیاته تېزي ښکاره کول۔

**بحال**:-(بَ + حا + لْ) [فا (راورټي) ص ،مذ] پـه خپـل حال کښې ،پـه خپـل ځاے ، دوباره په ځاے شوے۔

**ــــ کول** :-(راورټي) اص ۔په خپل حال کول ، په ځاے کول ، دوباره نوکري تـه راوستل

**بحالي** :-(بَ + حا + لِ + يْ) [فا (راورټي) ص ، مؤ] پـه خپـل حال کېدنـه ، پـه ځاے کېدنه ، دوباره یو ځاے ته راوستنه ، په نوکرۍ دوباره لگېدنه۔

**بحث** :-(بَ+ حْ + ثْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : بحثونه] پـه یـو معامله باندې خبرې اترې او سوال جواب ، تکرار ، د دوؤ یـا زیـاتو کسانو تـر مېنځـه پـه یو معامله باندې د دلیلونو په رڼا کښې خبرې اترې ،مناظره

د دېوال په خوا کښې ناست وي

تول بحثونو ته ښۀ راسـت وي (بهادر شاه ظفر)

**ــــ کول** :-(اص) د دلیلونو پـه رڼاکښې پـه یـو معامله خبرې اترې کـول ، او د یو بل د پر کېدو کوښښ کول۔

**بحر** :-(بَ +حْ+رْ ) [ع،اس،مذ ،و،ج : بحرونه] (۱) سمندر ،دریاب (۲) د شعر وزن (۳) اص۔د علم د ریاب

عبــادت د ریا کــار هېڅ په کار نۀ دے

لکه غوک هسې په بحر کښې مر دار شي (رحمان)

، لوے عالم،د لوے علم خاوند

**بحرالکاهل** :-(بحر + اُلْ+ کا + ه +لْ) [ع ، اس ، معر ، مذ] د دُنیا د ټولـو نـه لـوے سمندر۔

**بحر وبر**:- لُغ : سمندر او خشکي،اوچه او اُوبۀ ، اص : ټوله دنیا ،لوړه ژوره

نۀ شي ځایے په بحروبر کښې

وکــا ځایې زمـا پـه سر کښې (کاظم خان)

**داشعار بحر** :-(اص) د شعرونو وزن ،

څۀ حاصل د ممسکانو له دولته

د اشعار بحر وي تـل بې تراوته (کاظم خان)

**ــــ بې پایان** :-(اص) (۱) هغه سمندر چې غاړه او ویخ ئې نۀ وي معلوم ، ډېر لوے او ژور سمندر ۔هغه سمندر چې پایاؤ ئې نۀ وي معلوم ۔(۲) لوے عالم

**ــــ ظلمات** :-(اص) تور سمندر ، طوفاني سمندر ،دهشتناک او ویروونکے سمندر

**بُحران** :-(بُ+ حْ + را + نْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] سختي ، نـازک ، حالت ، آخري نکتـه ، پـه مرض کښې هغـه حالت چې مـریض یـا مړ شي او یـا ئې تبـه وشلېږي۔

**بحري** :-(بَ+حْ + رِيْ) [ع ، ص] سمندري ، سمندر سره تعلق لرونکے

**ــــ بېړه** :-(اص) سمندري جهازونه یعني سمندري فوځ۔

**ــــ جهاز** :-(اص) سمندري جهاز ،هغه جهاز چې په اوبو کښې چلېږي

**ــــ سفر** :-(اص) په سمندري جهاز کښې سفر۔

**بحریه**:-(بَ+حْ +ر+ يَه) [ع ، اس ، ص ، مؤ] د سمندري جهازونو محکمه۔

**بحیره** :-(بُ+ حَيْ + رَه) [ع ، اس ، مؤ] یو وړوکے سمندر ، د سمندر یوه چره۔

**بُخـار** :-(بُ + خـا + رْ) [ع ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بخـارات] (۱) لـوگے ، بـړاس ، گرمي (۲) غصه و تاؤ (۳) تبه۔

**بُخارا** :-(بُ+ خا + را) [اس معرفه ، مذ] د روسي ترکستان یـو مشـهور ښـار ، دا ښار د انسانیت د تهذیب زانگو گڼلے شي۔

که لــه قدره ئې شېدا خبر عنبر شي

ځان به خاورې د سر هند او بخارا کا (کاظم خان)

**بخاره** :-(بُ+ خا + رَه) [پ (گن) اس ، ص] (۱) یو قسم خوږه خربـوزه چې تخم ئې د بُخارا نه راغلے دے۔(۲) کورے ، کوت کورے ، دُخلي۔

**بُخـاري** :-(بُ+ خـا + رِيْ) [فـا ، اس ص] (۱) د بُخـارا اوسـېدونکے ، (۲) د سېدانو یـوه څانگـه ، (۳) امـام بخـاري چې د حدیثونو مشـهور کتـاب صحیح بخاري ئې لیکلے دے (۴) انگیټي۔

**بخت** :-(بَ + خْ + تْ) [فا ،اس، مذ ، و ، ج :بختونه]قسمت، نصیب برخه

د رحمان بخت به هالهٔ د خوبه ويښ شي
که ته ستر ګي ورته پورته کړې له خوبه (رحمان)

ـــــ **آزمائيل** :-(اص) قسمت معلومول ، جدوجهد کول ، کوښښ کول ، يو کار په توکل کول.

ـــــ **اُودهٔ کېدل** :-(اص) قسمت خرابېدل ، بدقسمته کېدل ، بې وسه ، بې کسه کېدل ، بد نصيبه کېدل ، بدې شپې ورځې راتلل ، تنګسيا او کړاک کښې ګېرېدل.

ـــــ **ګرځېدل** :-(اف) اص ـ د بخت مخ اړول ، بد بخته کېدل ، بد نصيبه کېدل ، بد قسمته کېدل ، بدې شپې ورځې راتلل ، خوشحالي په غم بدليدل.

ـــــ **ورته شاکول** :-(اص) و ـــ بخت ګرځېدل.

ـــــ **ويښېدل** :-(اص) قسمت راويښېدل ، بخت بېدار کېدل ، نېک بخته کېدل ، خوش بخته او خوش قسمته کېدل ، بخت ستورے عروج ته رسېدل.

**پر بخت سپرېدل** :-(اف) اص ـ خوش قسمته کېدل ، خوش نصيبه کېدل ، بختور کېدل.

**خوش بخت** :-(اص) خوش قسمتي ، نېک بخت ، د ښهٔ قسمت خاوند ، د ښهٔ ستارې خاوند.

**د بخت کوکب** :-(اص) د بخت ستورے ، قسمت ، نصيب برخه.

زمانه که مې افتاب د بخت کوکب کا
شپه به هـــله د فراق شي په ما تــېره (کاظم خان)

**کم بخت**:-(اص) بد نصيبه ، بد قسمته ، خوار و زار ، بې کسه ، بې وسه.

**بُخت** :-(بُ + خْ + تْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا : بُختـه ، ج : بُختې) ] ښخ شوے ، ګېر ، مشغول ، بوخت ، لګيا

ـــــ **کېدل** :-(اص) سخت مشغول کېدل ، يو کار ته ورلاندې وتل ګېرېدل ، ښخېدل (په ختو کښې)

**بُخت تـوب** :-(بُخت + تـو + بْ) [اف : پ (قاموس) مذ] مشغوليت ، اختـه والے ، ګېرېدنه.

**بُخت تيا** :-(بُخت + تْ + يا) [اف : (قاموس) مؤ] و ـــ بُخت توب

**بَختک** :-(بَ + خْ + تَ + کْ) [فا ، اس ، معرفه ، مذ] د نوشېروان بادشاه وزير ، متل : "چې بختک ئې وزير وي او نوشېروان ئې بادشاه وي نو دا وطن وران واخله."

**بختوالے** :-(بُخت + وا + لے) [اف : پ (قاموس) مذ] مشغولتيا ، بوختوالے.

**بختـور** :-(بَ + خْ + تَ + وَ + رْ) [پ ، ص ، مذ (مؤ : بختـوره] قسمتي بخت لرونکے ، نېک بخت ، د ښه بخت خاوند ، د ښه نصيب څښتن

د هر کس چې خواب ضرر کا شيدا بويه
لکـه بخـت هسې بېـــدار د بخـتورو (کاظم خان)

**بختورې** :-(بَ + خْ + تَ + وَ + رې) [پ (مهمند) اص] دانې ، کوې.

**بختول** :-(بُ + خْ + تَ + و + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] په څهٔ کار اختـه کول ، مشغول کول ، ګېرول ، ښبلول.

**بختونه** :-(بُ + خْ + تَ + و + نه) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ بُختول

**بُختوونکے** :-(بُ + خْ + تَ + وُوْ + نْ + کے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بُختـوونکي (مـؤ : بختـوونکې) ] مشـغول کـوونکے ، اختـه کوونکے ، ګېروُونکے ، ښبلوونکے ، بُختوونے.

**بُختوونے** :-(بُ + خْ + تَ + وُوْ + نے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، و ، ج : بُختووني ، (مؤ : بُختوونې) ] و ـ بُختوونکے.

**بُخته** :-(بُ + خْ + تَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بُختې] ډېرې ختې چې سرے پکښې ښبلي ، بوخته.

**بَختـي** :-(بَ + خْ + ت + يْ) [فـا ، اس ، ص ، مـذ ] هغـه اوښ چـې صـرف د سورلۍ دپاره مخصوص وي ، باري نهٔ وي.

**بختيار** :-(بَ + خْ + تْ + يا + رْ) [پ ، ص ، مذ] لُغ : چې بخت ئې ملګرے وي.اص : بختور ، قسمتي.

**بُختېـدل** :-(بُ + خْ + تـې + د + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص لا مشـغولتيا ، اخته کېدل ، ګېرېدل ، لګيا کېدل.

**بُختېدنګ** :-(بُ + خْ + تې + دَ + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] بُختېدنه ، مشغولېدنه ، لګياکېدنه ، اخته کېدنه ، بُختېدهٔ.

**بُختېدنه** :-(بُ+خ+ تې+د+نه) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـ بُختېدنګ

**بُختېدونکے** :-(بُ + خْ + تې + دُو + نْ + کے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بُختېدونکي ، (مؤ : بختېـدونکې ] مشـغولېدونکے ، اختـه کېدونکے ، لګيا کېدونکے ، ګېرېدونکے

**بُختېدونے** :-(بُ+خْ+تې+دُوْ+نې) [اف: پ (قاموس) مذ] و ـ بُختېدونکے

**بُختېدهٔ** :-(بُ + خْ + تې + دهٔ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ بُختېدنه

**بُخچګی** :-(بُ + خْ + چْ + ګ + ی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـ بُڅخګی.

**بُخچـه** :-(بُ + خ + چَـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بخچې] و ـــ بُڅخه

**بُڅخګی** :-(بُ + خْ + ثْسَ + کی) [پ (ب ، خ) اس ،مؤ] و ـ بڅخګی

**بُڅخه** :-(بُ + خْ +ثْسَ + ه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بُڅخې] و ـــ بُڅخه.

د خــــاطر بخڅه مې خسې تا خــــالي کړلــــه تالا
لکه غل د خپلې خولې همېش روغدے وي په غلا (خوشحال)

**بخـره** :-(بَ + خْ + رَه) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بخـرې] برخـه ، حصـه ، نصيب ، قسمت

غفران بخره يې جــــدي شي
خوش حالي يې سرمدي شي (کاظم خان)

**بخشـنده** :-(بَ + خْ + شِ + نْ + دَه) [فـا ، فـا ع ، مـذ ،وا] بخښـونکے ، انعـام ورکوونکے.

ما بې عشقه بل هنر نهٔ زده ناصحه
بخشـــــنده شه که نادان يم که دانا (رحمان)

**بخشـي** :-(بَ + خْ + شـيْ) [فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بخشـيان] (۱) ديـوان اکاؤنټنټ ، تنخواه تقسيموونکے (۲) جرنېل ، کمانډر ، سالار.

**بخشـيش** :-(بَ + خْ + شـِ + شْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بخشيشـونه] و ـــ بخښښ.

**بخښـاوو** :-(بَ + خْ + خـا + وُوْ يـا بَ + خْ + شـا + وُوْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مذ] سخي ، بخښنه کوونکے ، بخشش کوُونکے.

**بخښښ** :-(بَ + خْ + خ يا بَ + خْ + شَ + شْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ ،وا] بخشش ، انعام.

ـــــ **کول** :-(اف) اص.بخشش کول ، انعام ورکول.

**بخښـل** :-(بَ + خْ + خ +ل يـا بَ + خْ + شَ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص مـت] بخشل ، انعام ورکول ، معاف کول.

چې په روئي به ئې بخښل شي پاک نه پاک
بــــل سرے نهٔ دے صـاحب دے د لولاک (خوشحال)

**بخښلے** :-(بَ +خْ +خَ +لے يا بَ +خْ + شَ +لے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : بخښلي ، (مؤ : بخښلې] بخشلے ، معاف شوے

**بخښنه** :-(بَ + خْ + خ + نـه يـا بَ + خْ + ش + نـه) [اف : پ (قاموس) حمـص]

بخشش کونه ، انعام ورکونه ، معاف کونه ، بخشنه.

**بخښـونکې** :-(بَ+خْ+ښُوْ+نْ+کې یا بَ+خْ+شُوْ+نْ+کې) [اف: پ (قاموس) اس فاع ، مذ ،وا ، ج: بخښونکي (مؤ: بخښونکې)] بخشوُنکې ، بخشش کوُونکې ، ورکوُونکې ، معاف کوُونکې.

**بخښونې**:-(بَ+خْ+ښُو+نې یا بَ+خْ+شُو+نې) [اف: پ (قاموس) فاع ، مذ ، وا ، ج: بخښوني (مؤ: بخښونې)] و.بخښونکې

**بخښنه**:-(بَ+خْ+ښَه یا بَ(خْ+شه) [اف: پ (قاموس) حمص] بخشش

**بُخل** :-(بُ+خَ+لْ) [ع ، اس] شومتیا ، بخیلي.

**بخمل** :-(بَ+خْ+مَ+لْ) [پ ، اس، مذ ، وا: ج: بخملونه] یو قسم مشهور ریښمین ټوکې ، مخمل.

عاشقان چې تر سر تېر شي هله کښل کا

د دلبـــــرو پستې خولې لکه بخمل (خوشحال)

**بخملی** :-(بَ+خْ+م+لِ+يْ) [اف: پ (قاموس) اس، ص، مذ] (۱) یو قسم سور رنګې چینجې چې الوزي او د پسرلي په موسم کښې پیدا کېږي. سره ناوې (ظفر) (۲) د بخملي رنګ یو مارغۀ چې د شپې مالې اوازونه کوي (۳) د هر هغه څيز د صفت په ډول استعمالېږي چې بخملي رنګ لري.

**بخملی**:-(بَ+خْ+م+لی) [پ ،اس ، مؤ] پېشوګې ، هغه چینجې چې په ببرو ، غنمو او شوتل په فصل کښې پیدا کېږي .د سبزې فصل دپاره ډېر خطرناک څيز دے .چې په سرې وګرځي نو بدن خاربښت شروع کړي او متیاکې شي.

**بخملي ګوتې** :-(بخملي+ګُوْ+تِ+يْ) [اف: پ (قاموس) ص] د پېغلې نازکې پستې سرې ګوتې.

**بخن** :-(بَ+خَ+نْ) [پ ، ص ، مذ (مؤ: بخنه] دا ټکې د څلورو ابتدائي رنګونو ، سپین ، تور، سُور او زیړ سره یو ځاے وئیلې شي او د کمي معنې تړي نه را اوزي .لکه: سپین بخن ، سُور بخن وغېره .د نورو مخلوط رنګونو سره نشي وئیلې لکه زرغون بخن وغېره.

**بخن بخن** :-(بَ+خُ+نْ+بَ+خُ+نْ) [اف: پ (قاموس) ص ، مذ (مؤ ،وا: بخنه بخنه ، ج: بخونې بخونې)] رنګا رنګ ، قسماقسم ، د مختلف رنګ

**بخوړے**:-(بَ+خُوْ+ړے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: بخوړي] (۱) بؤ ، بلا ، چې ماشومان پرې یرولې شي.(۲) د بوسو سخے.

**بخــول** :-(ب+خْ+وَ+لْ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د زړۀ پـرده ، (۲) ډېر زیات فریاد ، زوېرګي.

**زړۀ تر بخول وتل** :-(اف) لُغ: زړۀ د پردې نه وتل ، اص: د یو څيز خوړو ته ډېر په تلوسه کېدل ، د خوراک د څۀ څيز ډېره اشتها او تلوسه لرل .د څۀ څيز ډېر شوق لرل.

**بخوله**:-(بَ+خُ+وَ+له) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: بخولې] څۀ بده واقعه ، ناڅاپي حادثه ، څۀ اندوهناکه او غمجنه واقعه.

**بخې** :-(بَ+خ+ی) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ] بخیه ، په ټوکي باندې نرے ګنډ ، د لاس یا مشین په ذریعه.

**بخې پرې کول** :-(اف) اص . بخیه په کول ، ډېر ښائسته کول ، یو کار ډېر په ښۀ طریقه سره برابرول.

**بخې پرې وهل** :-(اف) اص.و ـــ بختې پې کول .

**بخیل** :-(بَ+خيْ+لْ) [ع ، اس ، مذ ،وا ، ج: بخیلان (مؤ ، وا ، بخیله ،ج: بخیلې)] (۱) شُوم ،کنجوس ،پیسه چُوکې (۲) ناړامه ، اړک ، وران.

**بخیلي** :-(بَ+خيْ+لِيْ) [فا ، اس ، مؤ] (۱) شومتیا ، شوم توب ، کنجوسي ، پیسه چوکي (۲) ناړامتوب ، وراني.

**بخیه** :-(بَ+خْ+یَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: بخیې] ګنډون، کشیده

**بد** :-(بَ+دْ) [فا ، ص ، مذ ، وا ، ج: بدان ، (مؤ ، وا: بده ، ج: بدې)] ناکاره ، خراب ، ناجائز ، بېهوده.

دبو او دد که په خوا درشي خو بهتر دے

خوائـــے دې بد ســـړے درنۀ ولې په خوا (رحمان)

ــــــ **بخښل** :-(اص) بد معاف کول، بد هېرول، خپل دښمن نه بدله نۀ اخستل، بغېر د څۀ نه بدله نۀ اخستل ، بغېر د څۀ شرط نۀ یو دښمن معاف کول.

ــــــ **بد راغورزېدل**:-(اص) ډېر سخت راپرېوتل ، وران وران راپرېوتل.

ــــــ **بد راګېرېدل** :-(اص) سخت راګېرېدل ، په څۀ زیات هېبت او تکلیف کښې کښېوتل.

ــــــ **بد رانیول** :-(اص) د چا په څۀ معامله کښې راګېرول.

ــــــ **بد راویشتل** :-(اص) ډېر سخت راپرزول ، وران وران راپرزول.

ــــــ **بد کتل** :-(اص) په غصه کښې کتل ، ډېر په قهر او سوخت کښې چاته سترګې اړول ، د چا موجودګي په یو ځاے کښې نۀ خوښول.

ــــــ **بد کېدل** :-(اص) غصه کېدل،نیت خرابېدل،قهرجن کېدل ، سوختېدل.

ــــــ **بد نښتل** :-(اص) (۱) سخت ګېرېدل ، د چا په څۀ معامله کښې سخت ایسارېدل ، (۲) په جال یا لُومه کښې د مرغۍ راګېرېدل.

ــــــ **بد وهل**:-(اص) (۱) ډېر زیات وهل ، ښۀ ګوشمالول ، د بُوسو سخے جوړول ، سم سم وهل ، د چا اډ ګوډ ماتول (۲) د چا دوکه کول.

ــــــ **پرزېـدل** :-(اص) ډېر خراب شکست خوړل ، سخت کمزورے کېدل،متې پرېکېدل

ــــــ **پرېښول** :-(اص) بدو نه لاس اخستل ، نېک سړے جوړېدل ، بد کارونه پرېښول.

ــــــ **په خپله څولۍ کښې پرېوتل** :-(اص) بد ورسېلمه کېدل ، د بدو کارونو نتیجه برداشت کول ، څۀ کړل هغه رېبل ، د خپلو بدو نتیجه په خپله برداشت کول.

ــــــ **په لاس راخستل** :-(اص) غلط کارونه شروع کول ، د خېر کار نۀ کول ، خلقو ته تکلیف ورکول ، هر چا ته لکه د سپي خولۀ اچول ، د نیکۍ نوم نۀ اخستل.

ــــــ **ختل** :-(اص) (۱) بد خویه ثابتېدل ، غصه ناک ښکاره کېدل .(۲) بهادر یادېدل ، زړۀ ور ثابتېدل ، جنګیالے ، مضبوط او طاقتور ثابتېدل.

ــــــ **خوارېدل** :-(اص) ډېر زیات خوارېدل ، ډېر مفلس کېدل.

ــــــ **راپرېوتل** :-(اص) سخت ګېرېدل ، په سختۍ کښې پرېوتل مشکلات پېښېدل ، د خلاصي لارې بندېدل .

ــــــ **غورزېدل** :-(اص) سخت ناجوړه کېدل ، سخت مفلس کېدل، سخت کمزورے کېدل.

ــــــ **غوښتل** :-(اص) چا دپاره په زړۀ کښې بد ساتل ، بدنیتي کول ، چا سره منافقت کول ، د چا خېر نۀ غوښتل .

ــــــ **کول** :-(اص) د ګناه کار کول، چا ته بد رسول، چاته خامخا نقصان ورکول

ــــــ **ګټل** :-(اص) خراب نوم پیدا کول ، د بدو بدله بد اخستل ، د خپل کردار نتیجه برداشت کول.

ــــــ **ګرځېدل** :-(اص) خراب کارونو ته لاس اچول ، د نیکۍ نه ځان لرې کول ، هېڅ قسم ذمه واري نۀ محسوس کول ، په ازادۍ سره د ګناه کارونه کول .

ــــــ **نښتل** :-(اص) سخت راګېرېدل ، په مصیبت کښې پرېوتل ،

مشکلات پیښېدل.

**ــــ نیول** :-(اص) په یوه ناجائزه خبره ټینګېدل، بد په لاس اخستل توت ته ښېره ویل، ضد کول.

**ــــ ورپیښېدل** :-(اص) په حلوا کښې اغزے کېدل، په بدو اوړېدل. تکلیف موندل، مصیبت کښې پرېوتل، څۀ حادثه یا نقصان ورپیښېدل.

**ــــ ورسېلمه کېدل** :-(اص) د بدو کارونو نتیجه ورپیښېدل.

**بدو سره کښېناستل** :-(اص) خراب مجلس کښې کښېناستل، د خرابو او ناکاره خلقو سره ناسته پاسته کول.

**په بدو اوړېدل** :-(اص) (۱) په بد کار آموخته کېدل (۲) بدو خلقو سره په مقابله کښې پرېوتل، خرابو خلقو سره مقابله راتلل، په دښمنۍ اوړېدل (۳) مشکلات ورپیښېدل، مصیبت کښې پرېوتل

**زړۀ بد بد کېدل** :-(اص) زړۀ خرابېدل، زړۀ ډکېدل.

**بد اختر** :-(بَد + اَ + خْ + تَ + رْ) [فا، ص، مذ] بد قسمت، بد نصیب، بد مرغه، سپېرۀ، بد فاله، بدشګون.

ځان د چا په طلب وژني بد اختر
چې روان ئې لکه اور تر خاکستر (کاظم خان)

**بد اخلاق** :-(بَد + اَ + خْ + لا + ق) [فا، ص، مذ (مؤ، وا: بداخلاقه، ج: بد اخلاقې)] بد خویه، بد کرداره، مجرم، د معاشرې دښمن، غېر مهذب.

**بد اروا** :-(بَد + اَ + رْ + وا) [اف: پ (قاموس) ص] اوږ سترګې، حریص، سپک، اروا وړے، د خېټې چټو، خېټو.

**ــــ کېدل** :-(اف) اص. اوږ سترګے کېدل، اروا وړے کېدل، حریص کېدل، خېټو کېدل.

**بد اروائي** :-(بد + اَ + رْ + وا + يي) [اف: پ (قاموس) اس، ص، مؤ] اروا وړتوب، اوږ سترګوالے، سپکوالے، حرص، لالچ.

**بد اصل** :-(بد + ا + صَ + لْ) [فا، اس ص، مذ، وا: (مؤ: بداصله)] کم ذات، کمینه، رذیل، غېر نجیب.

**بد اصله** :-(بد + اَ + صَ + لَه) [پ، اس، ص، مؤ، وا، ج: بداصلې] د بد اصل تانیث.

**بد اطوار** :-(بد + اَ + طْ + وا + رْ) [فا، اس، ص، مذ (مؤ: بداطواره] بد اخلاق، بد چلنه، بې واکه، د خرابو عادتونو خاوند، بد معاش.

**بد اعتقاد** :-(بد + ا + عْ + ت + قا + د) [فا، اس، ص، مذ (مؤ، وا: بداعتقاده، ج: بد اعتقادې)] بې عقیدې، هغه څوک چې عقیده ئې خرابه وي.

**بد انتظامي** :-(بد + ا + نْ + ت + ظا + مي) [فا اس، مؤ، وا، ج: بد انتظامۍ] (۱) خراب انتظام، ګډ وډ بندوبست، (۲) اړے ګړے، باچاګردي.

**بد اندېش** :-(بد + اَ + نْ + دې + ش) [فا، اس، ص، مذ، وا] مؤ، وا: بد اندېشه، ج: بد اندېشنې)] بدنیته، بکرزړے، تور نیتے، خراب، بد باطن.

**بد اندېشي** :-(بد + اَ + نْ + دې + شي) [فا، اس، مؤ وا، ج: بد اندېشۍ] بدنیتي، تور نیتي، بد باطني.

**بد اوازے** :-(بد + اَ + وا + زَے) [پ، ص، مذ] بد آواز لرونکے، د مکروه اواز خاوند

**بد باطن** :-(بد + با + طِ + نْ) [فا، اس، ص، مذ، وا، (مؤ، وا: بد باطنه، ج: بد باطنې)] و ــــ بد اندېش

**بد باطني** :-(بد + با + طِ + ني) [فا، اس، مؤ، وا، ج: بدباطنۍ] و ــــ بد اندېشي.

**بدبخت** :-(بد + بَ + خْ + ت) [فا، اس، ص، مذ، وا، ج: بدبختې] کم نصیب، بد قسمت، سپېرۀ، بد نصیب.

**بدبخته** :-(بد + بَ + خْ + تَه) [پ، اس ص، مؤ، وا، ج: بدبختې] د بد بخت تانیث.

**بد بختي** :-(بد + بَ + خْ + تِي) [فا، اس، مؤ] بدنصیبي، بد قسمتي، سپېرۀ توب

**بد بوړے** :-(بد + بو + ړے) [اف: پ (قاموس) اس ص، مذ، ج: بد بوړي (مؤ: بد بوړې)] بُوټ وربوزے، د ترېو تندي خاوند، خفه

**ــــ کښېنستل** :-(اف) اص. وربوز بوټ کول، تندے ترېو کول، خفه کېدل، ترېو مخ نیول.

**بدبو** :-(بد + بُو) [فا، اس مذ] خراب بوئي، سخا بوئي

**بد بوهے** :-(بد + بُو + هے) [پ (سو) اس، ص، مذ، وا، ج: بدبوهي (مؤ، وا: بدبوهه)] هغه سړے چې بده خولۀ ئې وي.

**بدبوئي** :-(بد + بُو + ئَي) [فا، اس، مؤ] خراب بوئي، ګندګي، سخا والے، د کرکې څیز، ګنده او بوئي ناک اواړ.

**بد بویه** :-(بد + بُو + یَه) [پ، ص] خراب بوئیں لرونکے، سخا، ګنده

**بد بوئي** :-(بد + بُو + ئي) [پ، اس، مذ] و ــــ بد بو.

**بد پرهېز** :-(بد + پَ + رْ + هې + زْ) [فا، اس، ص، مذ، وا، ج: بدپرهېزان، بد پرهېزي (مؤ، وا: بد پرهېزه، ج: بد پرهېزې)] هغه څوک چې پرهېز نۀ کوي. خوله نۀ نیوؤکے، پال نۀ ساتونکے.

**بد پرهېزي** :-(بد + پر + هې + زِي) [فا، اس، مؤ] بې پرهېزي، بې پالي، د خوراک نه خولۀ نۀ نیونه.

**بد پوره** :-(بد + پو + ره) [اف: پ (قاموس) اس ص مذ] په قرض او معامله کښې کوټه سړے، بې اعتماده، بد معامله.

**بد پورے** :-(بد + پو + رے) [آف: پ (قاموس) اس ص، مذ] و ــ بدپوره

**بد تر** :-(بد + تَ + رْ) [فا، اس ص، مذ، وا، ج: (مؤ، وا: بدتره، ج: بدترې)] و ــــ بتر.

**بد تري** :-(بد + تَ + رِي) [پ، اس، مؤ] و ــــ بتري.

**بد ترین** :-(بد + تَ + رِي + نْ) [فا ص، مذ (مؤ، وا، بدترینه، ج: بدترینې)] ډېر زیات خراب، بې کچه وران.

**بد تمیز** :-(بد + تَ + م + يْ + زْ) [فا، اس، ص، مذ، (مؤ: بدتمیزه)] بې حیا، شوخ چشم، وران و شریر، بې لحاظه، رذیل، بې ډېه، کاواک.

**بد تمیزه** :-(بد + تَ + مي + زَه) [پ، اس، ص، مؤ، وا] د بد تمیز تانیث.

**بد تمیزي** :-(بد + تَ + مي + زِيْ) [فا، اس، مؤ] بداخلاقي، بې حیائي، بې تمیزه کار.

**بد توب** :-(بَ + دْ + تو + بْ) [پ، ص، مذ] بد والے.

**بد تهذیب** :-(بد + تَ + هْ + ذِي + بْ) [فا، اس، ص، مذ، (مؤ، وا: بدتهذیبه، ج: بد تهذیبې)] بې ادب، بې خویه، بد خویه.

**بد تهذیبه** :-(بد + تَ + هْ + ذِي + بَه) [پ، اس، ص، مؤ، وا] د بد تهذیب تانیث.

**بد تهذیبي** :-(بد + تَ + هْ + ذِي + بِي) [فا، اس، مؤ] بې ادبي، بد خوئي، بد اخلاقي.

**بد جوله** :-(بد + جُو + لَه) [اف: پ (قاموس) ص] بد شکله. وران شکلے، بد رنګ، بې نمکه.

**بد ځناور** :-(بد + ځَ + نا + وَرْ) [پ، اس، ص، مذ، وا، ج: بد ځناوران] (۱) خنزیر، سُور، سر کُوزے، سوډر، بد لېوۀ (۲) خراب سړے، وران کاره سړے، بد چلنه سړے.

**بد ځناور توب** :-(بدځناور + تو + بْ) [پ، اس، ص] سوډري، ضد، وران کاري، بد ځناورتیا.

**بد ځناورتیا** :-(بدځناور + ت + یا) [پ، اس] و ــــ بدځناور توب

**بد چاروکے** :-(بد + چا + رُو + کے) [اف: پ (قاموس) اس، ص، مذ، وا، ج:

بد چاروکي (مؤ : بد چاروکې) ] بدچلنه ، بدکاره ، بد فعله.

**بد چلن** :-(بد + چَ + لَ + نْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: بدچلنه ، ج : بد چلنې) ] بد اخلاق ، د خراب خوئي خاوند ، بدچلنده.

**بد چلنه** :-(بد+ چَ + لَ + نَه) [پ ، اس ، ص، مؤ ، وا ، ج : بدچلنې] بد اخلاقه ښځه ، بد چلنده.

**بد چلنده** :-(بد+ چَ + لَ + نْ + ده) [پ ، اس ، ص ، مؤ] و ـ بد چلنه

**بد چلني** :-(بد + چَ + لَ + نِيْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بدچلنۍ] بداخلاقي ، بد خوئي.

**بد حال** :-(بد + حا + لْ) [فا ، اس ، ص ، مذ (مؤ : بدحاله) ] بده ورځ ، سپېرۀ توب ، خراب حالت ، ناسازه وخت ، مشکلات ، ګډ وډ ژوند ، ګراني ، د تکليفونو ورځې.

**بد حاله** :-(بد + حا + لَه) [پ ، اس ، ص ، مؤ ، وا ] بې حاله ، چې حال ئې خراب وي.چې په هوش کښې نه وي.

**بد حالي** :-(بد + حا +لِيْ) [فا ، اس ، مؤ] و ــ بد حال.

**بد حواس** :-(بد+ حَ + وا +سْ) [فا ، اس ،ص ، مذ ، (مؤ : بد حواسه) ] وارخطا ، پرېشان ، لېونے ، غمجن.

**بد حواسي** :-(بد + حَ+وا + سِيْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] وارخطائي ، پرېشاني ، لېونتوب

**بد خرڅه** :-(بد + خَ + رْ + ڇے يا خَ + رْ + تسے) [پ ، اس، ص ، مذ ، وا ، ج : بد خرڅي] فضول خرڅه.

**بد خرڅي** :-(بد + خَ + رْ + تْسِ + يْ) [پ ، اس ، مؤ] فضول خرڅي د آمدن نه زيات خرڅ ، بې ځايه خرڅ.

**بد خشان** :-(بَ + دَ + خْ + شا + نْ) [فا ، اس ، معـ] د چيني ترکستان په سرحد د افغانستان يوه صوبه ، د بدخشان لعل و ياقوت مشهور دي.

چې ياقوت ئې هر خارا دے
بـدخشــان او بـخارا دے (کاظم خان)

**بد خصلت** :-(بد + خَ + صْ + لَ + تْ) [فا ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا: بدخصلته ، ج : بد خصلتې) ] بد اخلاقه ، بد خويه ، بدکرداره ، د خرابو عادتونو خاوند ، بدکارے.

**بد خصلتي**:-(بد+خَ+صْ+لَ+تِيْ) [پ ، اس ، مؤ] بدخوئي ، بدعادتي.

**بد خط** :-(بد + خَ + طْ) [فا ،اس ص،مذ (مؤ ، وا: بدخطه] (۱) چې خط ئې سخا او خراب وي -چې خراب ليک کوي .(۲) بد رنګے ، سخا ، سخامخے ، بدې بشرې والا.

**بد خطه** :-(بد + خَ + طه) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا] و ـ بدخط.

**بد خطي** :-(بد + خَ + طِيْ) [فا ، ص ، مؤ] خراب خط ، خراب ليک.

**بد خُلق** :-(بد + خُ + لْ + قْ) [فا ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا: بداخلاقه)] (۱) خراب خوئي لرونکے ، چې عادت ئې ښۀ نۀ وي.بد خويه ، د خويه سپک (۲) کبرجن ، مغرور.

**بد خُلقه** :-(بد+ خُ + لْ + قَه) [پ ، اس ، ص ، مذ، مؤ ، وا ، مؤ ، ج: بدخُلقې] و ــ بدخُلق.

**بد خلقي** :-(بد + خُ + لْ + قِيْ) [فا ، ص ، مؤ ، وا] بدخوئي ، خراب عادت ، خراب خوئي خصلت.

**بد خو** :-(بد + خُوْ) [فا ، اس ،مذ ، وا (مؤ : بدخويه ، ج : بد خوئې)] و ــ بد خلک.

**بد خويه** :-(بد + خُو + يَه) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ] و ـ بد خو،بداخلاقه.

**بد خواب** :-(بد+ خوا+ بْ) [فا ، اس ، ص ، مذ] خراب خوب،يرووُنکے خواب ، ناکاره خوب.

**بد خوابي** :-(بد + خوا + بِيْ) [فا ، ص ، مؤ] بې ارامي ، بد خوبي.

**بد خواه** :-(بد + خا + ه) [فا ، ص ، مذ ، وا ، ج : بد خواهان] بد غوښتونکے ، دښمن ، بُغضي ، حاسد ، کينه ور ، د بل په خوشحالۍ خفه کېدونکے او په تاوان ئې خوشحالېدونکے ، مخالف.

په هر غم کښې خاموش اوسه او کــه نۀ وي
د بد خوا خاطر به خوښ دوست به ازاد کړې (رحمان)

**بد خواهي**:-(بد+ خوا+هِيْ) [فا ،ص ، مذ] د چا بده غوښتنه ، دښمني.

**بد خوبي** :-(بد+ خو + بِيْ) [پ ، ص ، مؤ] و ــ بد خوابي.

**بد خولے** :-(بد+ خُو + لے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : بدخولي ، (مؤ: بدخولې) ] (۱) بد زبانه ، پوچ خولے ، کنځل مار ، وران خولے ، (۲) چيچُونکے سپے ، وران سپے ، دارُونکے (ځناور).

**بد خوئي** :-(بد + خُوْ + ئِيْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا] خراب خوئي ، خراب عادت ، خراب خوئي خصلت.

**بد خويه** :-(بد + خُوْ + يَه) [فا ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا] و ـ بدخو.

**بد خبره** :-(بد+خې + ره) [پ ،ص،مذ ، مؤ] بې خبره ، بخيل ، بې کاره ، د چا په کار نۀ راتلونکے ، نۀ منونکے ، چاته فائده نۀ رسوُونکے.

**بد دعا** :-(بد + دُ +عا) [فا ، اس ، ص ، مؤ] ښېرې ، ازار ،د چا تباهي غوښتل ، خداے تعالیٰ ته د يوسړي د کمي سوال کول.

**بد دماغ** :-(بد + د + ما + غ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا، (مؤ ، وا: بددماغه ، ج : بد دماغې) ] و ــ بد دماغه.

**بد دماغه** :-(بد + دِ + ما + غَه) [پ ،اس،ص ، مؤ ، مذ ، وا، مؤ، ج: بد دماغې] (۱) چې دماغ ئې خراب وي -چې مازغۀ ئې ښۀ کار نۀ کوي (۲) کبرجن ، مغرور ، بدخويه ، تيز طبيعته.

**بد دماغي** :-(بد+ دِ + ما + غِيْ) [فا ، ص ، مؤ ، وا] کبر ، غرور.

**بد ديانت** :-(بد + دِ + يا + نَ + تْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ،وا (مؤ ، وا: بد ديانته ، ج : بد ديانتې] تګ ، امانت خوړونکے ، خيانت کوونکے ، بې اتباره ، بې ايمانه.

**بد ديانته** :-(بد + دِ + يا + نَ + ته) [پ ، اس ، ص، مؤ ، مذ ، وا، مؤ، ج : بد ديانتې] و ــ بد ديانت.

**بد ديانتي** :-(بد + دِ + يا + نَ + تِيْ) [فا، ص ، مؤ ، وا] تګي ، بې اتباري ، خيانت کونه.

**بد ډوله** :-(بد + ډَو + له) [پ ، ص] بدشکله ، بې ډوله ، بد رنګ.

**بد ذات** :-(بد + ذا + تْ) [فا ، اس ، ص، مذ(مؤ ، وا: بد ذاته ، ج : بد ذاتې) ] و ــ بد اصل.

**بد ذاته** :-(بد + ذا + تَه) [پ ،ا س، ص ، مؤ ، مذ ، وا، مؤ ، ج : بدذاتې] و ــ بد اصل

**بد ذاتي** :-(بد + ذا + تِيْ) [فا ، ص ، مؤ ، وا] کم اصلي ، کمينه توب شېطاني ، وران کاري.

**بد ذائقه** :-(بد + ذا + ئې + قَه) [فا ، ص ، مذ] بې خونده ، چې خوند ئې خراب وي.

**بد ذهن** :-(بد + ذِ + هْ + نْ) [فا ، اس ، ص ، مذ(مؤ : بدذهنه) ] چې ذهن ئې ښۀ نۀ وي -چې پوهه ئې تيک نۀ وي .کم عقل ، ناپوهه ، کم دماغه ، کند ذهن.

**بد ذهنه** :-(بد+ ذِ+هْ+ نَه) [پ، اس ص ، مؤ، مذ] و ــ بد ذهن

**بد ذهني** :-(بد + ذِ + هْ + نِيْ) [فا ، ص ، مؤ ،وا] ناپوهي ، کم عقلي کم دماغي.

**بدر** :-(بَ + دَ + رْ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بدرُونه] سفېده ،

سپین چنارونه.

**بـدر** :-(بَ + دَ + رْ) [ع ، اس ، مـذ ، وا] (۱) پـوره ، سـپوږمۍ ، د څوارلسـمې سپوږمۍ.

بدر سمادي دیــار د مــخ له بــدره کم دے
زلفې وریځې ، غابښ نشته په دې بدر منیر کښې (علیخان)

(۲) د مدینې منورې سره نژدې یو ځاے چېرته چې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم او کفارو اولنۍ جنګ شوے ؤ - چې پکښې مسلمانانو برے موندلے ؤ.

**ـــــ کول**:-(اص) ایستـل ، اوباسل ، لرې کول ، در په در کول ، باهر کول.

**بد راه** :-(بد + را + هْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا] بې لارې ، ګناهګار بد رهه.

**بد راهي** :-(بد + را + هيْ) [فا ، اس ، مؤ] بې لارې توب ، ګمراهي.

**بد رقه** :-(بد + رَ + قَه) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بدرقې] (۱) بدرګه ، حفاظتي دسته ، هغه ټولے چې د چا د حفاظت دپاره چا سره ځي

ستـــا فتـنه تا سره لکه اسمان ځي
بدرفه به دې څوک څۀ یا همراهي کا (کاظم خان)

(۲) دوائي سره د ورکولو څیز ، امدادي څیز.

**بدر کاڼے** :-(بدر + کا + ڼْ + ے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بدرکاڼي] بکیانه ، شنړۍ ، (ظفر).

**بدرګه**:-(بد + رَ + ګه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بدرګې] (۱) و ـ بدرګه (۲) په مړي پسې د اولې ورځې خېرات (۳) د یو کلي نوم.

**بدرګې** :-(بد + رْ + ګې) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : بدرګي ، (مؤ ، وا : بدرګه ، ج : بدرګې] بد اصل ، کم اصل ، غېر نجیب ، دوه رګه کمینه ، رذیل ، شېطان ، وران کارے.

**بد رنګ** :-(بد + رَ + نْ + ګ) [فا ، ص ، مذ (مؤ : بد رنګه ، ج : بدرنګې] بد شکله ، د غېر متناسب وجود خاوند - بې ډوله ، تور شکلے ، بې نمکه ، بې سُره ، بد ګوشنے.

**بد رنګه** :-(بد + رَ + نْ + ګه) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا ، مؤ ، ج : بدرنګې ] و ـــ بدرنګ.

**بد رنګي** :-(بد + رَ + نْ + ګيْ) [پ ، ص ، مؤ] (۱) بد شکلي ، سخا جُثه ، (۲) د زمانې پېر ، خراب حالت - بې رنګي ، (۳) د تاش په لوبه کښې چې د چا سره د کار پتې نۀ وي (۴) سپکاوي ، جګړه ، بې عزتي.

**بــدرو** :-(بــد + رو) [پ ، اس ، مــؤ ، وا] (۱) د بــدرې جمــالې مخفــف (۲) معشوقه ، (۳) دښځو نوم.

**بدره** :-(بد + رَه) [پ (ظفر) اس ، مؤ ، وا ، ج : بدرې] څپیاکه ، ټپې غوشۀ

**بُدري** :-(بُ + دْ + رِيْ) [پ ، اس ، مؤ] (۱) تېندک ، ټکره ، (۲) بده پېښه ، تاوان

**ـــــ رسېدل** :-(اص) نقصان رسېدل.

**بُدرۍ** :-(بُ + دْ + رْ + ۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـ بُدري.

**ـــــ خوړل** :-(اص) (۱) تېندک خوړل ، ټکره خوړل ، ټوک خوړل (اف) (۲) په څۀ کار کښې زیان من کېدل (ظفر).

**بُدري بېږه** :-(ظفر) اص - د سرې مېښوکې او سرو سترګو مږ

**بدري** :-(بَ + دْ + رِيْ) [اف : پ (قامـوس) اس ، مذ] (۱) منافقت (۲) زیـان ، نقصان ، تکلیف ، ضرر.

**ـــــ کول** :-(اف) اص - منافقت کول ، دوکه کول.

**ـــــ موندل** :-(ظفر) اص - زیان موندل ، ضرر موندل.

**بدړ بنګ** :-(بَ + دَ + ړْ + بَ + نْ + ګ) [پ (وز) اس ، مـذ] د بنګـو هغـه قسـم چې نشه ئې ډېره سخته وي.

**بد زړے** :-(بد + زْ + ړَے) [پ ، ص ، مذ و وا ، ج : بد زړي] بدنیتـه ، حاسـد ، بُغضي ، د خلقو برناحق دښمن ، په زړۀ خیرن.

**بد زبان** :-(بد + زُ + با + نْ) [فا ، اس ، ص ، م ، (مؤ ، وا : بدزبانه)] و - بد ژبے

**بـد زبانه** :-(بـد + زَ + بـا + نَـه) [پ ، اس ، ص ، مـذ ، مـؤ ، وا ، مـؤ ، ج : بدزباني] و ـــ بد زبان.

**بد زباني** :-(بد + زَ + با + نيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا] کنځل ، شکنجا ، زیږې ، خرابه ژبه ، بده خولۀ.

**بد ژبے** :-(بد + ژْ + بے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : بد ژبي] بد زبانه ، د ترخې ژبې خاوند ؤ د هغه ژبې خاوند چې خوږه خبره په کښې نۀ وي ، جګړمار ، بکواسي ، پوچ خولے ، بې واکه ، سنغ ژبے.

**بد ساعت** :-(بد + سا + ع + تْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا] بده ګړۍ ، بده ورځ.

**بد سترګے**:-(بد + سْ + تَ + رْ + ګے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : بدسترګي] (۱) بې حیا ، بې مروته ، بې سړیتوبه ، غېر مهذب ، شوخ (۲) هغه سړے چې په خلکو ئې نظر لګي ، یا خلک د نظره کوي.

**بد سرے** :-(بد + س + رَے) [پ ، ص ، مذ ، و ، وج : بدسري] مغرور ، کبر جن ، کم عقل ، لېونے ، بې وقوف ، احمق ، په خبره نۀ پوهېدونکے.

**بد سلوک** :-(بد + سَ + لُو + کْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا : بدسلوکه)] چاته په سپک نظر کتـل ، خراب سلوک ، په خرابه طریقه چا سره سوال جواب کول - د چا بې عزتي کول.

**بد سلوکه** :-(بد + سَ + لُوْ + کَه) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا] (۱) و ـــ بـد سلوک (۲) بې ډوله ، چې د مخ سرۀ ئې نۀ وي ، بې څېره.

**بد سلوکي** :-(بد + سَ + لُو + کيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا] (۱) خراب سلوک (۲) ناکاره عمل ، ناکاره کار.

**بـد سولے** :-(بـد + سو + لے) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، ج : بدسولي ، (مؤ ، بدسولې)] و ـــ بد اروا.

**بـد شـکل** :-(بـد + شَ + کَ + لْ) [فـا ، اس ، ص ، مـذ ، وا (مـؤ : بدشـکله)] بدصورت ، سخا ، ناولے ، ګنده ، چې شکل ئې وران وي - څوک چې بنائسته نۀ وي - بد رنګے ، بې نُوره.

**بـد شـکله** :-(بـد + شَ + کْ + لَـه) [پ ، اس ، مـص ، مـذ ، مؤ ، وا ، مـؤ ـ ج : بدشکلې] و ـــ بدشکل.

**بد شکلي** :-(بد + شَ + کْ + ليْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] سخا رنګ ، بدرنګي.

**بـد شګون** :-(بد + شَ + ګُو + نْ) [فا ، اس ، ص ، مذ] سپېرۀ ، بد قسمت ، سیاه بخت ، بد نصیب ، د سپېرۀ تندي خاوند.

**بد شګوني** :-(بد + شَ + ګُو + نيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا] بدمرغي ، بدفالي ، بدقسمتي ، سپېرۀ توب.

**بد صورت** :-(بد + صُو + رَ + تْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا (مؤ : وا : بدصورته)] و ـــ بدشکل.

**بد صورته** :-(بد + صُوْ + رَ + ته) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا] و - بد شکل

**بد صورتي** :-(بد + صُوْ + رَ + تيْ) [پ ، اس ، مؤ] و ـــ بد شکلي.

**بد طینت** :-(بد طِيْ + نَ + تْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا : بدطینتـه ، ج : بـد طینتـې)] بـد فطرتـه ، بـد ذات ، بـدکار ، بدخویـه ، بـد زړے ، بدنیتے ، بد اصل ، بدنیته.

**بد طینته** :-(بد + طِيْ + نَ + تَه) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مو ، وا] و - بد طینت.

**بد طینتي** :-(بد + طِيْ + نَ + تيْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] بدنیتي ، بدخوئي ، بد ذاتي.

**بـد ظـن** :-(بـد + ظَ + نْ) [فـا ، اس ، ص ، مـذ ، وا (مـؤ ، وا : بدظنـه)] بـدګمان ، شکي.

**بـد ظنـه** :-(بـد + ظَ + نَـه) [پ ، اس ، ص ، مـؤ ، وا] [پ ، اس ، ص ، مـؤ ، وا] و – بدظن.

**بد ظني** :-(بد + ظَ + نيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا] بدګماني ، شک.

**بد عمل** :-(بد + عَ + مَ + لْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا: بدعمله) ج: بدعملي] چې عمل ئې ښهٔ نهٔ وي-بدکردار ، ورانکارے ، لوفر ، اُوچکه (سو) لُوچه .

**بد عمله** :-(بد + عَ + مَ + لَه) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، مؤ ، ج: بدعملي] و-بدعمل

**بد عملي** :-(بد + عَ + مَ + لِيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا] وران کاري ، لوفري ، بدکرداري.

**بد عهد** :-(بد + عَ + هْ + دْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: بدعهده)] بې وعدې ، بې وفا ، بې لوظه ، کوټه.

**بد عهده** :-(بد + عَ + هْ + دَه) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا] و-بدعهد.

**بد عهدي** :-(بد + عَ + هْ + دِيْ) [پ ، س ، مؤ ، وا] بې وفائي - بې لوظي ، کوټه توب.

**بد غونے** :-(بد + غُوْ + نَے) [پ (ظفر) ص ، مذ ، وا ، ج: بدغُوني ، (مؤ: بدغونې)] بدمخے ، بدشکله ، بدنما ، بې ډوله ، بدرنګے.

**بد فعله** :-(بد + فِ + عْ + لَه) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ] بداطواره ، بدکردار ، وران کار ، زناکار .

**بد فعلي** :-(بد + فِ + عْ + لِيْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا] بدکاري ، زنا بداخلاقي.

**بد قسمت** :-(بد + قِ + سْ + مَ + تْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: بدقسمته ، ج: بدقسمتې)] بد نصیب ، بد برخې ، چې قسمت ئې خراب وي-چې ټنده ئې خرابه وي ، کم نصیبے ، کم بخت.

**بد قسمته** :-(بد + قِ + سْ + مَ + ته) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا: مؤ ، ج: بدقسمتې] و —— بدقسمت.

**بد قسمتي** :-(بد + قِ + سْ + مَ + تِيْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] بدنصیبي د قسمت خرابي ، د ټنډې یا تندې خرابي.

**بد کار** :-(بد + کا + رْ) [فا ، اس ، ص مذ ، وا ، ج: بدکاران (مؤ ، وا: بدکاره ، ج: بدکارې)] بد عمله ، د بدو کارونو کوونکے ، بد اخلاق ، ګناهګار ، مُجرم ، زناکار ، بد کردار.

**بد کاره** :-(بد + کا + رَه) [فا ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا ، مؤ ، ج: بدکارې] و —— بدکار

**بد کاري** :-(بد + کا + رِيْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] بد عملي ، بد فعلي زنا ، بد کرداري

**بد کردار** :-(بد + کِ + رْ + دا + رْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: بدکرداران ، (مؤ ، وا: بدکرداره ، ج: بدکردارې)] بد عمله ، بد اخلاق ، د نیکۍ دښمن ، بد کارے ، بې سرېتوبه ، بدمعاش ، بد خویه ، د ګناه کارُونه کوُونکے.

بد کردار که صد ساله وي و رحمان ته
څرګندېږي لکه طفل شبینه (رحمان)

**بد کرداره** :-(بد + کِ + رْ + دا + ره) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا ، مؤ ، ج: بدکردارې] و —— بد کردار.

**بد کرداري** :-(بد + کِ + رْ + دا + رِيْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] بدعملي ، بد اخلاقي ، بد کاري ، زنا .

**بد ګره** :-(بد + ګ + رَه) [پ ، (شن) اس ، مؤ] بدي.

**بدګمان** :-(بد + ګُ + مَا + نْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا: بدګمانه)] و —— بدظن

**بد ګمانه** :-(بد + ګُ + ما + نَه) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا: ج] و-بدګمان.

**بد ګماني** :-(بد + ګُ + ما + نِيْ) [پ ، س ، مؤ ، وا] و-بدظني.

**بد ګو** :-(بد + ګو) [فا ، اس ص ، مذ ، وا] و —— بد خولے.

**بد ګوشنے** :-(بد + ګُو + شْ + نَے) [پ (سو) اس ص ، مذ ، وا] بدمخے ، د بدې ګونې خاوند ، سپېرۀ مخے.

**بد ګونے** :-(بد + ګُو + نَے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج: بدګوني] بدشکله تریو او ګونځې تندي والا ، وران شکلے.

**بد ګوئي** :-(بد + ګو + ئِيْ) [فا ، اس ، مؤ] بده ویناء ، بدزباني ، پُوچ ګوئي.

**بدل** :-(بَ + دَ + لْ) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: بدلې] بدله ، سندره ، غزل.

**بدلې پر ویل** :-(اف) په څهٔ څیز سندرې ویل-اص-په څهٔ څیز خوشحالي کول.

**بدلې وئیل** :-(مص تر) سندرې وئیل.

ګل چې شګفته شي عندلیب باندې نارې کا
نشته دے یو کسبلے چې پرې وبولم بدلې (خوشحال)

**په بدلو لویول** :-(اُف) لُغ: په سندرو لویول ، اص: په مدح وئیلو سره څوک دوکه کول ، د چا بې ځایه تعریفونه کول.

**په بدلو یادېدل** :-(اص) په سندرو کښې د چا ذکر کېدل ، د چا پیاوړي او نوموړي په سندرو کښې تعریف کېدل.

**بدل**:-(ب + دَ + لْ) [فا ، اس ، مذ (مؤ ، وا: بدله ، ج: بدلې)] (۱) پور ، عوض ، تاوان (۲) بدلېدل (۳) مختلف ، تبدیل (۴) تبدیلي ، د یو ځاے نه بدلې کېدل.

**—— اخیستل** :-(اص) پور اخیستل ، انتقام اخیستل.

**—— پورې ایستل** :-(اص) و —— بدل ور اړول.

**—— په بدل خلاص** :-(مح) چې څهٔ کول هغه موندل .

**—— موندل** :-(اص) صله موندل.

**—— ور اړول** :-(اص) په چا بدل زبادول ، د چا سره داسې لاس کول چې هغه په بدل ورکولو مجبوروي-بدل پورې ایستل.

**—— ورکول** :-(اص) عوض ورکول ، تاوان ورکول .

**بد لارے** :-(بد + لا + رے) [پ ص ، مذ ، وا ، ج: بدلاري (مؤ: بدلارې)] بې لارې ، په غلطه لار روان ، بد رهه ، اص: بدبخت ، بدکردار.

**بد لاري** :-(بَد + لا + رِيْ) [پ ، اس ، مؤ] بې لارې تلل ، په غلطه لار تلل ، غلطه لار نیول ، بې لاري ، بې اصولي ، اص: بدکاري ، بدفعلي.

**بد لامے** :-(بَد + لا + مے) [اف: پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، ج: بدلامي ، (مؤ: بدلامې)] بد عمله ، بدنام ، چې تور ورپورې شوے وي.

**بد لحاظ** :-(بد + لِ + حا + ظْ) [فا ، اس ص ، مذ ، وا (مؤ: بدلحاظه)] بې لحاظه ، بې مخه بې شتېه ، د چا لحاظ نهٔ کوُونکے ، بې مخ ملاحظې.

**بد لحاظه** :-(بد + لِ + حا + ظَه) [پ ، اس ص ، مذ ، مؤ ، وا ، مؤ ، ج: بدلحاظې] و —— بد لحاظ.

**بد لحاظي** :-(بد + لِ + حا + ظِيْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] بې لحاظي ، بې مخي.

**بد لزن** :-(بَ + دْ + لَ + ز + نْ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ ، وا بدلزنه ، ج: بدلزنې)] غزل خوان ، خوش اوازه ، سندرغاړے ، بدلې ویونکے.

**بد لمنه** :-(بَد + لْ + مْ + نَه) [پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج: بدلمنې] بدکاره فاحشه ، ناپاکه ، بدنامه ، بدعمله ، بد ژغے.

**بد لمنے** :-(بَد + ل + م + نے) [اف: پ (قاموس) ص ، مذ] ناپاک ، بدکار ، بدعمل.

**بد لمنی** :-(بد + ل + مْ + نیْ) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ] ناپاکي ، بدکاري ، بدعملي.

**بد لمبځ** :-(ب + د + ل + مي + څْس) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ] د قافیه ردیف ، برابرولو په لحاظ د شعر پېمانه.

**بد لنامه** :-(بد + لَ + نا + مه) اف: پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج: بدلنامې] بدلمنه ، بدکاره ، بدکرداره ، فاحشه ، بې شرمه ، بې حیا.

**بدلنامي** :-(بد + لْ + نا + مِيْ) [اف ک پ (قاموس) اس ، مؤ] بدکاري ، بې شرمي ، بې حیائي.

**بدلول** :-(بَد + لْ + و + لْ) پ ، مص مت] تبدیل کول ، په بدل کښې ورکول ، یا په بدل کښې اخستل ، د یو څیز په ځاے بل څیز کښېښول ، یو څیز

اخستل او بل ورکول ،

چې بدل ئې په کچکول د مهتاب خوان کړه

اعتـــماد د زمانـــــې په کمـــال نشته (کاظم خان)

**بدلون** :-(بَد+لُوْ+نْ) [پ ، حمص ، مذ] معاوضه ، بدلول ، ادل بدل

بخت مې خوب په سره جامه له سترګو واخست

سترګو بخـت مـــې سـره وکړو پدلون هسـې (عليخان)

**بدلونګ** :-(بَ+دْ+لْ+و+نْ+ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] بدلونه ، بدلون ، ادل بدل ، عوض.

**بدلونه** :-(بَ+دْ+لَ+وَ+نَه) [پ، حمص] و ـــ بدلونګ.

**بدلوونکی** :-(بد+ل+وُوْ+نْ+کے) [پ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: بدلوونکي] د يو څيز په ځاے بل څيز اخيستونکے.

**بدله** :-(ب+د+لَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بدلې] و ـ بدل.

**بدلـه** :-(ب+د+لـه) [اف : پ (قـاموس) اس مـؤ ، وا ، ج : بـدلې] سندره، مثنوي ، غزل،بدل.

**بدلي** :-(ب+د+لِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا] سندرغاړے ، غـزل خوان.

**بدلېـدل** :-(بَ+دْ+لـې+د+لْ) [پ مـص لا] (۱) تبـديل کېـدل ، د يـو ځاے نه بل ځاے تـه تلل ، (۲) د سودا په ډول د يو څيز په عـوض کنبې بل څيز اخيستل کېدل (۳) په غلطۍ د څيزونو ګډ وډ کېدل (۴) مخ اړول ، مغرور کېدل ، خوئي خصلت بدلېدل (۵) په دوستۍ کنبې سترګې بدلول ، زاړۀ دوستان هېرول.

**بدلېدنګ**:-(بَ+دْ+لې+د+نْ+ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] بدلېدنه.

**بدلېدنـه** :-(بَ+دْ+لـې+د+نَـه) [پ ، حمـص] (۱) د يـو ځـاے نـه بـل ځاے ته تلنه، تبديل کېدنه (۲) د سودا په ډول د يو څيز د بل څيز په عوض کنبې اخستل کېدنه (۳) په غلطۍ د څيزونو ګډ وډ کېدنه (۴) مخ اړونه ، زاړۀ دوستان هېرونه

**بدلېـدونکے** :-(بَ+دْ+لـې+دُو+نْ+کَے) [پ ،اس ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : بدلېـدونکي] (۱) تبـديل کېـدونکے ، د يـو ځـاے نـه بـل ځـاے تـه تلـونکے ، (۲) د سـودا پـه ډول د يـو څيـز پـه عـوض کنبـې بـل څيـز اخسـتلے کېـدونکے (۳) مـخ اړوونکـے ، زاړۀ دوسـتـان هېـروونکـے ، (۴) زمانه يا حالت نوربدل۔په بل رنګ کېدل.

**بدلېدۀ** :-(بَ+دْ+لې+دۀ) [پ ، حمص] و ـــ بدلېدنه.

**بد مخے** :-(بد+م+خے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : بدمخي ، (مؤ : بدمخې)] (۱) بدشکله ، بد رنګ ، بد صورت ، وران شکلے ، (۲) بې لحاظه ، بې مروته ، بې شرم ، بې حيا ، شوخ (۳) سوډر ، خنزير.

**بد مخي** :-(بَد+م+خِيْ) [پ ، اس ، مؤ] بې لحاظي ، بې شرمي ، شوخي ، بې مخي ، بې مروتي ، بې رنګي ، سترګې سپينول.

**بد مذهب** :-(بَد+مَ+ذغ+ہَ+ب) [پ ، اس ، ص ، مذ ،وا ، ج : بدمذهبي ، (مؤ ، وا : بدمذهبه ، ج : بدمذهبې)] کافر ، هغه څوک چې عقيده ئې خرابه وي۔د اسلام نه بهر ، دا ټکے د کنځلو په ډول هم وئيلے شي۔ متل : " بدمذهبي له خړ مذهبے ".

**بد مرغه** :-(بَد+مَ+رْ+غَه) [پ ، ص ، مذ ، مؤ] و ـ بد اختر.

بيــا په تـــېره دا زمـــا بد مرغه سوي

چې مې ګېر وي تل دغم په لوسې غوبل زړه (عليخان)

**بد مرغي** :-(بَد+مَ+رْ+غِيْ) [پ ، اس ، مؤ] بدشګوني ، بدفالي ، سپېرۀ والے.

**په بد مرغي اخته کېدل** :-(اف) په سپېرۀ ورځ اخته کېدل ، بدبخته کېدل

**بد مزاج** :-(بد+م+زا+جْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ،وا ، (مؤ : بدمزاجه)] بد خويه، مغرور، دماغي ، کبرجن ، چينجن.

**بد مزاجه** :-(بد+مِ+زا+جَه) [پ ، ص ، مذ ، مؤ ، وا ، ج : بدمزاجې] و ــــ بد مزاج.

**بد مزاجي** :-(بد+م+زا+جِيْ) [فا ، اس ، مؤ] چينجن طبيعت ، غـرور ، کبر ، د هوا په اس سورلي ، بد ذات او بد اصل والے.

**بـد مزګـي** :-(بـد+مَ+زْ+ګِـيْ) [پ ، اس ، مـؤ ، وا] خفګـان، خفتيـان ناراضګي.

**بد مزه** :-(بد+مَ+زه) [فا ، ص ، مذ] بې مزې ، بې خونده ،بدذائقه.

**بدمعاش** :-(بد+مَ+عا+شْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بدمعاشان (مؤ : وا : بدمعاشه ، ج : بدمعاشې)] (۱) بدکردار ، بد اخلاق (۲) قـانون نۀ منونکے، سرکش (۳) وران کارے.

**بدمعاشـه** :-(بـد+مَ+عـا+شَـه) [پ ، اس، ص ، مـذ ، مـؤ ، وا، مـؤ ، ج: بدمعاشې] و ـــ بدمعاش.

**بدمعاشي** :-(بـد+مَ+عـا+شِيْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] بـد اخلاقـي ، بـدکرداري ، بدکاري.

**بـدمعاملګي** :-(بـد+مُ+عـا+مَ+لَ+ګِيْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] ټګـي ، پـه لـېن دېن کنبې دوکه.

**بد معامله** :-(بد+مُ+عا+مَ+لَه) [پ، ص] و ـــ بدپورے

**بد مورے** :-(بد+مو+رَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ،وا] ازاري.

**بدن** :-(بَ+دَ+نْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : بدنونه] وجود ، تن ، جسم ، تنه ، جُثه.

د ماتم لباس مې سپين په بدن نه شو

ما د خاورو په شان تور پـېرهن راوړو (کاظم خان)

**بدنام** :-(بد+نا+مْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، (مؤ: بدنامه)] د خراب شهرت خاونـد ، پـه خلکـو کنبـې پـه بـده نامـه يادېـدونکے ، د خلکـو خنـدنے ، شرمېدلے ، بدلام ، رسوا.

نه به سپـــک نۀ به بـدنام نۀ به رسوا ؤ

که بورا غوندې ګونګټ په ګل شېدا وے (خوشحال)

**بدنامول** :-(بد+نا+مَ+و+لْ) [پ ، مص ، مت] تور پورې کول ، شرمول ، رسوا کول ، خراب شهرت ورکول ، بد لامول.

**بدنامونګ** :-(بد+نا+مَ+و نْ+ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ بدنامونه.

**بد نامونه** :-(بد+نا+مَ+و+نه) [پ حمص] تور پورې کونه ، بدنامي کونه ، رسوا کونه ، شرمونه.

**بدناموُونکے** :-(بد+نا+مَ+وُو+نْ+کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بـدناموونکي] تـور پـورې کـوونکے ، بـدنامي کـوونکے ، رسـوا کوونکے ، شرمووونکے.

**بدنامـه** :-(بـد+نـا+مَـه) [پ ، اس ص ، مـؤ ، وا ، ج : بـدنامې] (۱) د بـدنام تانيث (۲) اس ، تور ، بدنامي.

**بـدنامي** :-(بـد+نـا+م+يْ) [فا ، اس ، مؤ] بدنامتوب ، بدنامتيا ، پـه بـده نامه يادېدنه ، د خراب نوم شهرت ، په خلقو کنبې په بده نامـه يـاد ، د يـو غلط کار په وجه د خلقو د نظر نه پرېوتل ، رسوائي ، تور ، الزام.

مئے خواري که په عالم کنبې بدنامي ده

ما تر پښو دے لاندې کړے ننګ و نام (رحمان)

**بد نامېدل** :-(بد+نا+مې+د+ل) [پ ، مص لا] تور پورې کېدل ، شرمېدل ، شرم پورې کېدل ، رسوا کېدل.

**بدنامېدنګ** :-(بد+نا+مې+د+ن+ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ بدنامېدنه

**بدنامېدنه** :-(بد+نا+مې+د+نَه) [پ ، حمص] شرمېدنه ، بدنامېدنګ ،

رسوا کېدنه ، تور پورې کېدنه ۔

**بدنامېدونکے** :-(بد + نا + مې + دُو + نْ + کَے) (پ ، اس ، مف ، مذ ،وا ، ج : بدنامېدونکي ] رسواکېدونکے ، تور پورې کېدونکے ، شرمېدونکے ۔

**بدنامېدهٔ** :-(بد + نا + مې + دهٔ) [پ ، حمص] و ـــ بدنامېدنه

**بدنې** :-(بَ + دَ + نې) [پ ، اس ، مذ] ناغه ، جرمانه ، بانده ، بندڼ ،بنډار ، لکه : "په ځنګل مو بدنې کښېښود"۔

**ـــــ اخستل** :-(اص) ناغه اخستل ، د ځنګل د ټینګې ماتولو جرمانه اخستل ۔

**ـــــ کښېښول** :-(اص) ناغه کښېښول ، د ځنګل ټینګه کول۔

**بد نسل** :-(ب + نْ + سَ + لْ) [فا ، اس ، ص، مذ ، وا(مؤ ، وا: بدنسله) و-بداصل

**بد نسله**:-(بد + نَ + سْ + لَه) [پ ، اس ، ص ، مذ، مؤ ، وا] و ـــ بدنسل

**بد نصیب** :-(بد + نَ + صيْ + ب) [فا ، اس ص ، مذ ، وا، (مؤ ، بدنصیبه ، ج : بدنصیبې) ] بدقسمت ، بدمرغه ، سپېرهٔ ، خداے وهلے ، نېستمن ، شامتي۔

**بدنصیبه** :-(بد + نَ + صيْ + بَه) [پ ، اس ، ص ، مؤ ] بدقسمته ، بدبخته ، بدبرخې ، نا وادهٔ کړې پېغله ، چې د وادهٔ نه نااميده شوې وي۔ميراته ، سپېره ، د پلار په کور ناسته پېغله ، د خاوند نه مروره ښځه۔

**بد نصیبي** :-(بد+نَ+صيْ+بي) [فا، اس ، مؤ] بدقسمتي ، بدمرغي ، سپېرهٔتوب

**بدنما** :-(بد + نُ + ما) [فا ، ص] بدشکله ، په نظر خراب راتلونکے ، بد ښکاريدونکے ، بد رنګے ، په زړهٔ باندې ښهٔ نهٔ لګېدونکے ۔

**بد نمائي** :-(بد + نُ + ما + ئيْ) [فا ، اس ، مؤ ] بدرنګي ، بدشکلي سخاتوب

**بد نوه** :-(بد + نَ + وَه) [پ ، ص ، مؤ ] بې حيا ، شوخ ، بې قدره ، بې سرېتوبه، بې لحاظه ، (اکثر سترګو سره يو ځاے راځي۔لکه : "د هغهٔ سترګې ډېرې بد نوه دي")۔

**بد نه** :-(بْ + د + نَ + ه) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بدنې] (۱) د ښار يا د قلعې يوه حصه (۲) دقلعې برج۔(۳) د توت تنه ، ډډ يا سته ۔

**بدني** :-(بَ + دْ + ني) [پ (ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج : بدنيانې] هغه مسينه کوزه چې لاستے ئې نهٔ وي۔

**بدنيت** :-(بد+نْ+يَ+تْ) [فا ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا : بدنيته ، ج : بدنيتې) ] بدنيته ، بد خواه ، بغضي ، حاسد ، د بدو ارادو خاوند ، په زړهٔ خيرن ، تور زړے۔

**بد نيته** :-(بد + نْ + يَ + تَه) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا ، ج : بدنيتې ] و ـــ بدنيت

**بد نيتے** :-(بد + نِ + يَ + تَے) [پ (سو) اس مذ ، وا ، ج : بدنيتي] هغه څوک چې په شکل سخا او په زړهٔ تور وي۔

**بد نيتي** :-(بد + نِ + يَ + تيْ) [پ ، ص ، مؤ] حسد ، کينه ، تور زړتيا ، بد خواهي۔

**بدنے ګل** :-(بَ + دْ + نے) ګُ + لْ) [اف : پ (قاموس) اس مذ] يو قسم کشيده کاري۔

**بدو** :-(بَ + دُو) [اس ، مذ ، وا ، ج : بدوان يا بدوګان] صحرا نشين ، هغه عرب چې په يو ځاے کښې مستقل استوګنه نهٔ کوي ۔د ونسو او اوبو په تلاش کښې د مال سره د يو ځاے نه بل ځاے ته ځي ، اعرابي۔

**بدو** :-(بَ + دُو) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بدوګان ، بدوان ، (مؤ ، ج : بدوګانې ، بدوانې) ] (۱) شېطان ، فسادي ، ورانکارے (۲) نالائق ، ناپوهه ، کم عقل ، بودلے ،بودل ،بوتل۔

**بدوالے** :-(بَ + دْ + وا + لَے) [پ ، ص ، مذ] بدتوب ، خرابتيا ۔

**بدودي**:-(بْ + دُوْ + ديْ) [اف :پ (قاموس) ص ، مؤ] بدي ، تاوان نقص۔

**بد وربوز** :-(بَد + وَ + ر + بُوْ + زْ) [پ (سو) ص ، مذ ] بدشکل ، بدمخے ، سخا ۔

**بد وربوزے** :-(بَد + وَ + رْ + بُو + زَے) [پ (سو) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بدوربوزي] بد شکله ، بدمخے ، سخا ۔

**بد ورد** :-(بَ + دْ + و + ر + د) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ (مؤ وا: بدورده، ج : بدوردې] مخالف ، بد خواه۔

**بدوردسره ـــــ کېدل** :-(اف) اص ، يو بل سره دښمن کېدل ، يو تر بله مخالف کېدل، دښمني پيدا کېدل۔

**بد ورده** :-(بَ + دْ + و + رْ + ده) [اف : پ (قاموس) ص] بداخلاق ، بدبخت۔

**بدورګ** :-(بَد + و + رْ + ګ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، (مؤ ، وا: بدورګه ، ج : بدورګې) ] فسادي ، شېطان ، بدمعاش۔

**بدورګېدل** :-(بَد + و + ر + ګې + د + ل) [اف : پ (قاموس) مص لا] فسادي جوړېدل ، شېطانېدل ، وران کارے کېدل۔

**بدُورے** :-(بَ + دُوْ + رے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ګروه ، پښتورګے۔

**بدورينه** :-(بَ + دْ + و + ريْ +نه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هغه ډوډۍ چې د قحط په ورځو کښې د ځينې بوټو نه پخولے شي۔

**بدوړ** :-(بَ + د +و + ړ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ (مؤ ، وا: بدوړه ج : بدوړې) ] نقصاني سړے ، شېطان ، ضرر رسوونکے ، فسادي وران کارے ، شري۔

**ـــــ کېدل** :-(اف) شېطاني کول ، ضرري جوړېدل ، فسادي جوړېدل ، شري کېدل۔

**بدوړتوب** :-(بدوړ + تو + بْ) [اف : پ (قاموس) ص] بدکاري ، وران کاري ، شېطاني ، بد وړوالے ، شرارت۔

**بد وړل** :-(بَ + د + و +ړ + ل) [اف : پ (قاموس) فع مت] (۱) د ځان سره بدوړل ، په بده اخته کېدل (۲) خفه کېدل۔

**بدوړ والے** :-(بَدوړ + وا + لَے) [اف : پ (قاموس) ص] و ـ بدوړتوب۔

**بدوړول** :-(بَ + د + و + ړ + و + ل) [اف : پ (قاموس) مص مت] څوک فساد ته تيارول ، شېطاني کول۔

**بد وضع** :-(بَد + وَ + ضَ + ع) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا] سخا ، بې ډوله ، بې شکله۔

**بد وضعي** :-(بَد+وَ+ضْ+عيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا] بد شکلي ، بې ډولي ، سخاتوب۔

**بد وقرے** :-(بَد + وَ + قْ + رَے) [پ (سو) اس ص ، مذ ، وا] بې سرېتوبه ، بې مخه ، هغه څوک چې خبرې ئې اثر نهٔ لري۔

**بدوکرے** :-(بَد + و + ک +رے) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، ج : بدوکري (مؤ : بدوکرې) ] بدشکله ،بد ډوله ، بدصورته ، بدنما۔

**بدوګے** :-(بَ + دُو + ګَے) [پ ، اس ، تصغير ، مذ ، وا] د بدو اسم تصغير ، فسادي ، ورانکارے ، ځينې زنانه د مينې نه خپل بچي ته بدوګے وائي۔

**بدول** :-(بَ + دَ + و + ل) [پ ، مص مت] (۱) خرابول ، ورانول (۲)ناراضه کول ، خفه کول (۳) فسادي کول ، شېطانول ، د ماشوم په سر خېژول۔

**بدونګ** :-(بَ + دَ + و + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ بدونه۔

**بدونه** :-(بَ+ دَ + و + نَه) [پ ، حمص] خرابونه او ورانونه ، بدونګ۔

**بدوُونکے** :-(بَ + دَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس فاع ، مذ ، وا، ج: بدوُونکي] ورانوُونکے ، خرابوُونکے ، فسادي کوُونکے۔

**بُدھ** :-(بُ + دھ) [ه ، اس ، معر ، مذ] د بُدھ مذهب باني ، ګوتم بدھ ، مهاتما بُدھ ، سدهارة۔

**بُدھ مت** :-(بُدھ + مَ + تْ) [ه ، اس ، ص] د ګوتم بدھ مذهب۔

**بده** :-(بُ + دَه) [پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج بُدهې] د تنستې تار ، د بُودې مخفف۔

**بده ورځ** :-(بَ + دَه و + ر + دز) [پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : بدې ورځې] (۱) افت ، د تکليف او مصيبت ورځ (۲) غريبي ، تنګسيا ۔

**ـــــ پر راتلل** :-(اص) (۱) څوک په مصيبت تکليف کښې اخته کېدل ، بيمارېدل (۲) خوارېدل ، لُوږ لغړېدل ، (۳) په دښمنۍ اخته کېدل .

**ـــــ پر کېدل** :-(اص) وـــ بده ورځ پرې راتلل .

**بدې ورځې اخستل** :-(اص) (۱) نېستمنېدل ، خوارېدل (۲) دښمنۍ ته خوا مخوا پتون تپول .

**بدې ورځې راتلل** :-(اص) سپېرې ورځې راتلل ، د بدنصيبۍ زمانه راتلل ، خوارېدل ، غريبېدل ، نېستمن کېدل .

**په بده ورځ اخته کېدل** :-(اص) په سختۍ کښې ګېرېدل ، په مصيبت او تکليف کښې ګېرېدل ، په دښمنۍ اخته کېدل ، خوارېدل .

**په بده ورځ پسې ګرځېدل** :-(اص) په دښمنۍ پسې لنګ وهل ، خامخا وران کارونه کول .

**په بده ورځ ککړېدل** :-(اص) وـــ په بده ورځ اخته کېدل .

**د بدې ورځې مل** :-(اص) هغه يار چې په تکليف او مصيبت کښې پکار .

**بده و بېرانه** :-(بَده + و + بې + را + نه) [اف: پ (قاموس) اس ،ص، مؤ] ضرري او خرابه واقعه ، نقصاني او بده پېښه .

**ـــــ پېښول** :-(اف) اص .شر او فساد جوړول ، جګړه سازول .

**ـــــ پېښېدل** :-(اف) اص .ضرري او خرابه واقعه پېښېدل .

**بد هضمي** :-(بَد + ه + ض + مِيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا] د هاضمې خرابوالے ، د خېټې خرابي .

**بدهو** :-(بُ + دُهو) [پ ، اس ، مذ] په خالصه کښې يو کلے .

**بدهې** :-(بُ + دَ + هې) [پ ، اس ، مذ] په خالصه کښې يو کلے .

**بدی** :-(بَ +دی) [اف: پ (قاموس) اس مؤ] اوبو وړے ځاے .

**بدي** :-(بَ + دِيْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بدۍ] (۱) دښمني ، عداوت (۲) بد عمل .

چې نېکي بدي په تله کښې تلل شي
خود په خــپله تله واخله عدالت کړه (رحمان)

**ـــــ اخستل** :-(اص) دښمني اخستل ، عداوت ته تيارېدل ، جنګ ته ملا تړل .

**ـــــ کول** :-(اص) (۱) دښمني کول (۲) بد کار کول .

**بدّي** :-(بَ + دْ + دِيْ) [پ (مو) ترۀ يا مشر سړي ته د درغ کولو ټکے .

**بدے** :-(بَ + دَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بدي] (۱) وران کارے بد سړے ، شېطان ، فسادي (۲) د نيکي بدي د قيصو يو کردار .

**بدي** :-(بَ + دْ + دي) [پ (ب ، خ ، مر) ادس ، ندا] مور يا مشرې ښځې ته د درغ کولو ټکے .

**بـديا** :-(بَ + دْ + يـا) [اف : پ (قـاموس) ص ، مـؤ] خرابـي او فسـاد ، ورانکاري .

**بديا**:-(بَ +دْ+يا) [پ (ب ، خ) اس ، مذ] بېديا ، صحراء ، بهرته ، لُوګه .

**بديانے** :-(بد + يا + نَے) [پ ، (ب ، خ) اس ص ، مذ ، وا ، ج : بديانې (مؤ ، وا ، ج : بديانۍ)] بهرنے ، د بل وطن ، مسافر .

**بدي دار** :-(بَدي + دا + رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بدي داران ، (مؤ ، وا : بدي داره ، ج : بدي دارې] دښمندار ، هغه سړے چې چا سره ئې دښمني وي .په دښمنۍ اوښتے يا پېش .

**ـــــ کېدل** :-(اص) په دښمنۍ اوښتل ، بديدارېدل .

**بديداروَل** :-(بَ + دِيْ+ دا + رَ + وَ + لْ) [پ مص ، مت] دښمن جوړول ، مخالف کول

**بــدي داري** :-(بَـدي + دا + رِيْ) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بـدي دارۍ] دښـمني ، مخالفت .

**بدېـدل** :-(بَ + دي + دَ + لْ) [پ ، مـص لا] بدخويـه کېـدل ، بـد جوړېـدل ، خرابېدل ، ورانېدل .

**بديدنګ** :-(بَ +دي+دَ+نْ+ګ) [اف ،پ ،(قاموس) حمص] وـــ بديدنه .

**بدېدنه** :-(بَ +دي+دَ+نه) [پ ،حمص] خرابېدانه ، ورانېدنه ، بدېدنګ .

**بدېـدونکے** :-(بَ+ دي+دُو+نْ+کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: بدېـدونکي] خرابېدونکے ، ورانېدونکے ، بد جوړېدونکے ، بدو طرف ته مائل کېدونکے .

**بــديع** :-(بَ + ديْ + ع) [ع ، اس ، ص ، مذ] (۱) د خداے پـاک يـو صفت ، خالق ، پېداکوُونکے .

اے د کل جهان صنيعه اې دهر اسمان بديعه (کاظم خان)

(۲) عجيبه ، نادر (۳) د علم بيان يو قسم چې په کښې د کلام لفظي او معنوي خوبۍ بيان کولے شي .

**بډ** :-(بَ + ډْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، (مؤ ، وا : بډه ، ج :بډې] سيال ، برابر ، سارے ، ثاني ، په رُتبې کښې برابر .

**بُډ** :-(بُ + ډْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، (مؤ ، وا : بُډه ، ج : بُډې] يو لاسے ، هغه څوک چې لاس ئې يو وي ، بُونډے ، مونډے ، سُونډ مُونډ .

**بـډ** :-(بْ + ډْ + [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] څرګنـد ، ښکـاره ، پـه ډاګـه ، واضح ، دا ټکے اکثر د "رډ" سره وئيلے شي لکه : "رډ بډ" .

**په بډَ وئيل** :-(اف) اص .ښکاره وئيل ، څرګند وئيل ، په ډاګه وئيل .

**بُډا** :-(بُ + ډا) [پ ، س : بډها ، اس ، مذ ، وا ، ج : بُډاګان (مؤ ، وا ، ج: بُډۍ)] بوډا ، زوړ ، عمر خوړلے .

**بډائے** :-(بَ + ډا + ئے) [اف : پ(قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بډايان (مؤ ، وا: بډايه ، ج : بډايانې)] مالدار ، دولتمند ، شته من .

چې ګفتار دې ښۀ په ميـنه راته وسي
نو بډائے سم کوټے کوټے دُر ګوهر وړم (اکبر زميندار)

**ـــــ کول** :-(اف) اص .شتمنه ول ، مالداره کول ، دولتمند کول .

**ـــــ کېدل** :-(اف) اص .شتمنه کېدل ،مالداره کېدل ، دولتمند کېدل .

**بــډائے تــوب** :-(بَــډائے + تــو + بْ) [اف : پ ، (قــاموس) اس ص ، مــذ] مالدارتوب ، دولتمندي ، بډاينه ، شته مني ، بډائي .

**بډاينه**:-(بَ +ډا+يَ +نَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] وـــ بډائے توب .

**بډائي** :-(بَ + ډا + ئِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] وـــ بډائے توب .

**بډائي** :-(بَ + ډا + ئِيْ) [ث ، اس ، مؤ] کبر ، فخر ، لوئي ، غـرور ، ځان ته څۀ وئيل .

نظر نۀ کاندي هيچرې
پـه لـــويي په بډايي (رحمان)

**ـــــ کول** :-(مص تر) لوئي کول ، فخر کول ، غرور کول ، ځان په لويو کښې حسابول .

**بډبول** :-(بَ + ډ + بو + ل) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، (مؤ ، وا: بډبوله ، ج : بډبولې)] رښتونے ، رشتيا خبره کوونکے ، سپينې ويـونکے ، رښـتيا وېنا په بې باکۍ او زړۀ ورتيا سره کوُونکے ، سپين ډاګے .

**بډبولتوب** :-(بَډبول+ تو + ب) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] وـــ بډبولولي .

**بډبولتيا** :-(بَډبول + ت + يا) [اف: پ (قاموس) اس ، ص ،مؤ] وـــ بډبولولي .

**بډبولولي** :-(بَډ+ بول+ و+ لِيْ) [اف : پ (قـاموس) اس ص ، مؤ] بډبولتوب ، بډبولتيا ، رښتيا ، سپينه وېنا .

**بډغال** :-(بَ + ډَ + غا + ل) [پ ، اس ، مذ ، وا] وـــ بډګال .

**بـډګ** :-(بَ + ډَ + ګْ) [پ (سو) اس ، مـذ] د لـوخې ګُـل ، چې بالښـتونه ترې ډکېږي .

**بډګال** :-(بَ + ډ + ګا + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] نربوخ ، بلوکال ، ګل

لخ ، د لوخي ګل ، بډک ، بډغال.

**بډګي** :-(بَ + ډِ + ګيْ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مؤ ] اواره ګردي.

**بډل** :-(بَ + ډَ + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د ګيدړ وادۀ ، په باران کښې د نمر راڅرګندېدل (۲) سو : سُست ، تن اسانه.

**بُډنۍ** :-(بُ + ډْ + نۍ) [ پ ، اس ، معـ] (۱) پېښـور تـه نـژدې د يـو کلي نـوم (۲) د کابل د درياب يوه نالۀ.

**بډو** :-(بَ + ډُوْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ] بډي خور ، رشوت خور

**بډوړے** :-(بَ + ډُو + ړے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بډوړي ] بډوکے ، پُښتورګے ، ګُرده ، بډوکے.

**بډوکے** :-(بَ + ډُوْ + کے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بډوکي] و ـــ بډوړے.

**بډوګو** :-(بَ + ډو + ګو) [ پ ، (سو) اس ، مؤ ] بوډۍ ښځه ، چې ملائې کړه وي.

**بډوګے** :-(بَ + ډُوْ + ګے) [ پ (ګن) اس، مذ ، وا ، ج : بډوګي] و ـ بډوړے.

**بډوګے** :-(بُ + ډو + ګے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بډوګي] زوړ سړے ، د لوے عمر سړے ، هغه سړے چې د زوړوالي له کبله ئې ملا کړه شوې وي-ټيټه.

**بډولی** :-(بَ + ډُوْ + لی) [ پ، اس ، مؤ ، وا ، ج ] د خاورو کوزه.

**بډه** :-(بَ + ډَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بډې ] (۱) د پرتوګ ښان بډه -د پرتوګ پاسنۍ حصه چې پرتوګ ښان په کښې اچولے شي -ګنډه (ګن) (۲) نخښه ، نشانه ، هدف

چې دسر په ځاے سينه راته بډه کړه
هم هغه بـــه د ښو په غشو ولم (خوشحال)

(۳) د مياشتې اخري درې شپې چې سپوږمۍ پـه کښې نـۀ ښکاري (۴) ناغه ، غېر حاضري (۵) انډول ، دوه هم وزن او هم رتبه څيزونه (۲) د ډډه سره وئيلے شي-لکه : '' ډډه بډه ''.

ـــــ **اچول** :-(اص) (۱) زوړ پرتوګ ته پاسنۍ حصه نوې کول (۲) د زنانۀ دپرتوګ هغه پورتنۍ حصه چې د لاندينۍ حصې نه ئې کپړه لږه ارزانه وي (۳) ب ، خ -څپر دپاسه د شاړو نه جوړ شوے رسۍ. شان اچول - وندنے.

**بډي پسې راغښتل** :-(اص) د يو کار تر سره کولو دپاره کوښښ کول.-د خپل مقصد پوره کولو دپاره تياري کول .

**بډي پسې وهل** :-(اص) و ـــ بډي پسې راغښتل.

**بډي راغښتل** :- اص) و ـــ بډي راکښل.

**بډي راکښل** :-(لُغ) د تښتې دپاره تيارېدل ، اص.-(۱) يو کار ته پام کول (۲) حرص کول.

**بـډې ګـرول** :-(سو) اص .-(۱) د سپږو يـا وررږو پـه بـډه کښې د موجـودګۍ علامت، ځان ګرمول ، (۲) څۀ څيز ته هوس يا خواهش کېدل.

**بډي وهل** :-(لُغ) د پرتوګ پېنځې اوچتول ، اص (۱) د څۀ کار دپاره تيارېدل ، جنګ ته متې نغښتل ، جنګ ته تيارېدل.

**په بډه پياز ختل** :-(اص) بې اتباره ثابتېدل.

**په بډه کول** :-(اص) په بډه وهل ، څۀ څيز پټول ، څۀ شے په چل ول ځان ته کول يا خپلول-په زور څۀ څيز قبضه کول.

**په بډه لاس وهل** :-(اص) (۱) بډي ته لاس ور وړل ، (۲) د جنګ دپاره تياري کول-د بډي نه چاقو ، چاړۀ يا تماچه راويستلو دپاره لاس وروړل ، (۳) د چا تلاشي اخستل.

**په بډه وهل** :-(اص) و ـــ بډ ه کول.

**بډه اوښ** :-(بَ + ډَه + اُو + خ + يا ښْ) [اف : پ ، (قاموس) اس ، مذ] کورے ، يو غرئيز بوټے.

**بډه بول** :-(بَ + ډه + بو + لْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـ بډبول.

**بډه ببره** :-(بَ + ډَه + بې + رَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا] (۱) پېوندي ببره ، يو قسم ببره (۲) د پېښـور سره نـژدې د يو کلي نوم - متـل :- '' غم بـه ئې د بډه ببرې زبېر کوي ''.

**بډه ور** :-(بَ + ډَه + و + ر) [پ (سو) اس ص] کوهستاني خلک ، بې عقله خلک.

**بډي** :-(بَ + ډِيْ) [ پ ، اس ، مؤ ، ج ] بډې ، رشوت ، بډه.

ـــــ **اخستل** :-(اص) رشوت خوړل ، بـډې خـوړل ، رشـوت اخستل ، حـرام خوړل.

ـــــ **خوړل** :-(اص) و ـــ بډې اخستل.

ـــــ **شندل** :-(اص) و ـــ بډې ورکول.

ـــــ **ورکول** :-(اص) رشوت ورکول.

ـــــ **وېر کول** :-(اص) و ـــ بډې ورکول.

**بډے** :-(بَ + ډے) [ اس ، مذ ، ج ] و ـــ بډي.

**بډے** :-(بَ + ډے) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، ج : بـډي ، (مؤ ،۳وا ، : بډۍ) ] (۱) يو لاسے سړے ، هغه څوک چې يو لاس لري ، (۲) انډول ، د مقابلې وړ.

**بـډے** :-(بَ + ډَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بـډيان] د غـوا د اډوکي ببډے يا شپشتې.

**بـډۍ** :-(ب + ډۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] يو قسم لامبو ، هغه تاري چې يوائې په لاسو وهلے شي او پښو ته حرکت نۀ شي ورکولے -ګډو ، (سو) بډۍ لامبو.

**بډي لامبو** :-(بَډي + لا + مْ + بو) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص، مؤ] و ـــ بډۍ.

**بډيائي** :-(بَ + ډْ + يا + ئِيْ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا] فخر ، لوئي ، بډائي ، کبر ، غرور ، ويار.

که په غوږو باندې نوم د خزان واورې
بډيايي بـــه پـه سرو ګلو چمن نۀ کا (عليخان)

ـــــ **کول** :-(مص مت) فخر کول ، لوئي کول ، بډائي کول ، ويار کول ، غرور کول.

ـــــ **کېدل** :-(مص تر لا) فخر کېدل ، لوئي کېدل ، غرور کېدل ، ويار کېدل ، بډائي کېدل.

**بډي خور** :-(بَ + ډِيْ + خو + رْ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بډې خوارۀ ، (مؤ ، وا ، : بډې خوره ، ج : بډې خورې) ] رشوت خور ، هغه څوک چې بډې خوري.

**بــډي مــار** :-(بَ + ډِيْ + مــا + رْ) [پ ، اس ، ص ، مــذ ، وا] (۱) رشــوت ورکوونکے، بډې وړاندې کوونکے ، (۲) بډې خوړونکے ، رشوتي.

**بر** :-(بَ + رْ) [ پ ، اس ، مذ ] (۱) پاس ، پاسنے ، اوچت ، هسک

په جـلال ئې اسمان پر دے
په جمال ئې استان نمر دے (کاظم خان)

(۲) (سو) پلنوالے ، عرض ، (۳) غالب ، زورور ، وس برېدل ، بريالے (۴) مېوه ، پُور ، فصل

سر سروے دے فروله انفعاله
چې ئې ور نۀ کړه وچاته بر عزيز (کاظم خان)

(۵) اف : د زيـړي مـرض (۶) ګـوزن، فـالج ، شـل کېـدل ، د بـزو او اسـپو يـو مخصوص مرض (۷) اف : د نمر يا سپوږمۍ تندر نيول (۸) اف : د يرې ، ويرې يـا ډار نـه بيمارېدل (۹) تېـز ، بـاد ، تېغ (۱۰) د مرغۍ الوتنه (۱۱) خوا ، غېږ ، ترخ

د سيماب غونډې ګرېز که له ګرمې
ځنګه راشي هغه شوخ د شيدا بــرته (کاظم خان)

(۱۲) د ننبتر پانې.

**ـــــ راوړل** :-(اص) مېوه پيدا کېدل ، مېوه لګېدل.

**ـــــ سرته** :-(اص) پاس طرف ته ، پورته.

**ـــــ کېدل** :-(مص تر) برے مونډل، غالب کېدل ، برېدل.

**ـــــ وهل** :-(اص) (۱) ګوزن وهل ، د فالج په مرض اخته کېدل ، شل کېدل (۲) د مرغو الوتل ، تېز ، تيـز يـا تېغ پرېښـول (۳) پـه دو کـېدل ، منـږه کول،تبښتۀ کول (۴) د ماشوم دستونه کول (۲) د اور لمبه کول.

**ـــــ وهلے** :-(اص) لېونے ، پاګل.

**وس بر کېدل** :-(اص) برېدل ، لاس رسېدل ، د بدل اخستو موقع مونډل

**بُر** :-(بُ+رْ) [پ ، اس ، صو] د مرغو الوزولو دپاره يو اواز.

**برابـر** :-(بَ+را+بَ+رْ) [پ ، اس ، مـذ ، (مـؤ ، وا: برابـره ، ج: برابـرې) ] (۱) سم، يکسان،موقع،په طبع (۲) يو شان ،

برابر لــه ګدايه سره پاڅي
شهزاده او شهرير ددې دنيا (رحمان)

(۳) سيخ ، نېغ

برابــر درتــه کــتے ناظران نۀ شي
چې لباس لکه افتاب هسې زري کا (کاظم خان)

(۴) اوار ، هوار ، پـه يـوه مېچـه (۵) پـه يـو مـخ ، مسلسل (۲) بېشـک ، خامخا (۷) سارے ، په مرتبه کښې يو شان (۸) تيار ، درست.

**برابرتوب** :-(بَرابر+تو+ب) [پ ، اس ، مذ] برابرتيـا ، برابـروالے ، برابـري ، برابرښت ، موافقت ، سمون ، سمے.

**برابرتيا** :-(برابر+تْ+يا) [پ ، اس ، مؤ] و ـــ برابرتوب.

**برابرښت** :-(برابر+خ+ت+يا شْ+ت) و ـــ برابرتوب.

**برابر والے** :-(برابر+وا+لَے) [پ ، اس ، مذ] و ـــ برابرتوب.

**برابـرول** :-(بَ+را+بَ+رَ+وَ+لْ) [پ ، مص ، مت] (۱) سمول، يـو شـان کـول (۲) سېخول،نېغول (۳) اوارول ـ پـه يـو مـېچ کـول (۳) تيـارول ، درستول ، جوړول ، (۵) اص : سزا ورکول ، ډبول ، وهل.

**پر برابرول** :-(اف) مص تر.و ـــ په برابرول.

**په برابرول** :-(مص تر) يو څيز سمول ، دوه څيزونه په خپلو کښې يو شان کول ، جوړول ، سره برابرول.

**سره بـرا بـرول** :-(مص تر) دوه څيزونه سره يو شان کول ، درستول ، سمول ، جوړول.

**برابرونـګ** :-(بَ+را+بَ+رَ+وَ+نْ+ګ) [اف : پ (قـاموس) حمـص] و ـــــ برابرونه.

**برابرونـه** :-(بَ+را+بَ+رَ+وَ+نـه) [پ ، حمـص] (۱) تيارونـه ، سـمونه ، نېغونه ، اوارونه ، درستونه ، جوړونه ، (۲) وهنه ، ډبونه ، برابرونګ.

**برابروُونکے** :-(بَ+را+بَ+رَ+وُو+نْ+کے) [پ ، اس ، فا ، ع ، مذ ، وا ، ج : برابروُونکـي] سـموونکے،نېغوُونکے، جـوړوُونکے تيـاروُونکے ، سازوونکے ، اواروُونکے.

**برابري** :-(بَ+را+بَ+رِيْ) [پ ، اس ، مؤ] و ـــ برابرتيا.

**ـــ ته کتل** :-(اص) خپل سمې ته کتل ، خپلې اوارې ته خيال کول خپل زور جاچ کول.

**برابـرے** :-(بَ+را+بَ+رَے) [پ ، اس ، مذ] و ـــ برابري.

**ـــــ خوړل** :-(اص) څۀ څيز سمېدل ګو څۀ خبره جوړېدل يا سمېدل هسې برابرېدل.

**ـــــ راتلل** :-(اص) څۀ خبرې ته جوړېدل ، څۀ قيصې ته سمے راتلل.

**ـــــ کول** :-(اص) څۀ کار ته ځان سمول.

**ـــــ کېدل** :-(اص) څۀ کار ته جوړېدل.

**برابرېـدل** :-(بَ+را+ب+رې+دَ+ل) [پ ، مـص لا] (۱) سـمېدل، موافـق کېـدل (۲) يوشـان کېـدل (۳) سېخېدل،نېغېدل (۴) اوارېـدل (۵) تيارېدل جوړېدل (۲) سارې کېدل.

**پـه لاره کښـې برابرېـدل** :-(اص) (۱) پـه لاره يـو ځـاے کېـدل ، پـه لاره کښـې مخامخ کېدل (۲) څۀ څيز ناڅاپې مونډل ، څۀ شے بغېر د کوښښ نه په لاس راتلل.

**جامه پېزار برابرېدل** :-(اص) جامه پېزار په ناپ پوره وتل ، په بدن يا پښـه موافق راتلل.

**خبره برابرېدل** :-(اص) سمے خوړل ، څۀ خبره سمېدل.

**برابرېـدنګ** :-(بَ+را+ب+رې+دَ+نْ+ګ) [اف: پ(قـاموس) حمـص] و ـــــ برابرېدنه

**برابرېدنـه** :-(بَ+را+ب+رې+دَ+نـه) [پ ، حمـص] برابرېـدۀ ، سمېدنه ، يو شان کېدنه ، سيخېدنه ، نېغېدنه ، اوارېدنه ، تيارېدنه ، جوړېدنه ، سارې کېدنه ، برابرېدنګ.

**برابرېـدونکے** :-(بَـرا+ب+رې+دُو+نْ+کـے) [پ ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : برابرېـدونکې] سـمېدونکے ، يـو شـان کېـدونکے ، سـيخېدونکے ، نېغېدونکے ، اوارېدونکے ، تيارېدونکے ، جوړېدونکے ، سازېدونکے.

**برابرېدۀ** :-(بَ+را+ب+رې+دۀ) [پ ، حمص] و ـــ برابرېدنه.

**براوالے** :-(ب+را+ب+وا+لَے) [پ(ګن) اس ، مذ] بلاربېدنه ، بلاربوالے ، برالبوالے، خېټه کېدنه ، اُمېد پيدا کېدنه.

**برابلـول** :-(ب+را+ب+لَ+وَ+ل) [پ ، (ګـن) مـص مـت] بلاربـول برالبول ، تېرول.

**برابلونـه** :-(ب+را+ب+لَ+وَ+نـه) [پ (ګـن) حمـص] بلاربونـه ، برالبونه ، تېرونه.

**برابلوُونکے** :-(ب+را+ب+لَ+وُو+نْ+کَے) [پ (ګن) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : برابلوُونکي] بلاربوُونکے، برالبوُونکے ، تېروونکے.

**برابله** :-(بْ+را+ب+له) [پ (ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج : برابلې] بلاربه ، برالبه ، په خېټه ، په اُمېد ، تېره شوې ، حامله.

**برابلېـــدل** :-(بْ+را+بْ+لــې+دَ+لْ) [پ (ګــن) مــص لا] بلاربېــدل، برالبېدل،په خېټه کېدل ، په اُمېد کېدل ، تېرېدل، حامله کېدل.

**برابلېدنه** :-(ب+را+بْ+لې+دَ+نه) [پ (ګن) حمص] بلاربېدنه برالبېدنه ، پـه خېټـه کېدنـــه ، پـــه اُمېـد کېدنـه ، تېرېدنـه ، حاملـه کېدنـه ، تېرېدونکې.

**برابلېدۀ** :-(بْ+را+ب+لې+دۀ) [پ (ګن) حمص] و ـ برابلېدنه.

**برات** :-(بَ+را+تْ) [ع ، اس ، مذ] (۱) د شوقدر مياشت (۲) برخه، حصه (۳) هغه کاغذ يا پروانه چې د خزانې نه روپۍ پرې ورکولے شي.

**براځـه** :-(بْ+را+دزۀ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : براځـې] د اُوښ يا د غوايۀ غوشايۀ.

**برادر** :-(ب+را+دَ+رْ) [فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بـرادران] (۱) ورور رور ، (۲) اشنا ، يار.

**برادر جان** :-(برادر+جا+نْ) [فـا ، اس ، مـذ ، وا] (۱) ورور جان ، خوږ ورور ، (۲) چاته د غږ کولو په وخت وئيلے شي.

**برادري** :-(ب+را+دَ+ري) [فا ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : برادرۍ] (۱) ورورګيري (۲) عزيز ولي ، قامولي (۳) اشنائي.يارانه، دوستي.

**ـــــ پالل** :-(اص) (۱) ورور ګيري ساتل (۲) عزيز ولي ، قامولي يا خپلولي په

بنۀ شان کول ، (۳) په دوستۍ کښې وفاداري کول.

**براده** :-(بُ + را + دَه) [پ ، اس ، مؤ] د لرګي يا اوسپنې چُوره يا سفوف.

**برار** :-(بَ + را + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] وده ، ترقي.

ـــــ **کول** :-(اف) مص تر ، وده کول ، ترقي کول.

**برازيل** :-(بَ + را + زِيْ + لْ) [اس ، مذ ، وا] په سوېلي امريکه کښې يو لوے ملک.

**براس** :-(بَ + را + سْ) [انګ ، اس ، مذ] پيتل.

**براس بينو** :-(براس + بي + نْ + ږ) [انګ ، اس ، مذ ،وا] د بين باجې هغه ټولې چې د هغو سامان د پيتلو نه جوړ وي.

**براعظم** :-(بَ + رّ + اَ + عْ + ظَ + مْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : براعظمونه] د خشکۍ لويه حصه چې پکښې څو ملکونه وي ـ لکه براعظم ايشيا.

**براق** :-(بُ + را + قْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] (۱) سپين ، ځن کېدونکے ، چمکدار (۲) هغه سپين اس چې حضرت محمد صلى الله عليه وسلم معراج ته تشريف پرې وړے ؤ.

په نسه ؤ نظر نۀ کاندي بې نقده
که څوک حورې ورته ستايي يا براق (رحمان)

**برالا** :-(بَ + را + لاَ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] څرګند ، په جار ، ښکاره ، جوت ، بلنګ ، سپينه وېنا.

ـــــ **کول** :-(اف) اص ـ يو کار په څرګنده کول ، څۀ کار په سپين ډاګ کول.

ـــــ **برالا ويل** :-(اف) اص ، څرګند ويل ، ښکاره خبره کول ، په جار ويل ، جوته ژغېدا ، سپين ويل.

**برالبوالے** :-(ب + را + ل + ب + وا + لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــــ برابوالے.

**برالبول** :-(بْ + را + لْ + بَ + و + لْ) [اف: پ (قاموس) مص مت] و ـــــ برابلول.

**برالبونګ** :-(بْ + را + ل + بَ + وَ + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ برابلونه.

**برالبونه** :-(بْ + را + ل + بَ + و + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ برابلونه.

**برالبوُونکے** :-(ب + را + ل + بَ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : برالبوُونکي] و ـــــ برابلوونکے.

**برالبه** :-(ب + را + ل + بَه) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : برالبې] و ـــ برابله.

**برالبېدل** :-(بْ + را + ل + بې + د + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] ـــــ برابلېدل.

**خاکي برالبېدل** :-(اف) اص ـ د ښځې غېر شرعي ډول باندې اُمېد کېدل يا خېټه کېدل.

**برالبېدنګ** :-(ب + را + ل + بې + دَ + نْ + ګ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـــــ برابلېدنه.

**برالبېدنه** :-(بْ + را + لْ + بې + د + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ برابلېدنه.

**برالبېدونکي** :-(بْ + را + ل + بې + دُو + نْ + کي) [اف : پ (قاموس) اس ، مف ، مؤ ، وا] و ـــــ برابلېدونکي.

**برالبېدۀ** :-(بْ + را + ل + بې + دۀ) [اف ، پ (قاموس) حمص] و ـــــ برابلېدۀ.

**بر اله** :-(بْ + را + لَ + ه) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : برالې] د خاورو کندو ، ايکونه (ب ، خ) کُولے (ګن).

**برامته** :-(بَ + را + م + تَه) [پ ، اس ، مؤ] د قرضې په لړ کښې په يرغمال کښې ساتل.

**برامد** :-(بَ + رآ + مَ + دْ) [فا ، اس ، مذ ،وا] (۱) د يو څيز راوتل يا څرګندېدل (۲) د تجارتي سامان د ملک نه بهر تلل.

**برامد خېل** :-(برامد + خې + ل) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج] د اورکزو يو خېل يا ټپه.

**درامد برامد** :-(اص) د تجارت مال د بهر ملکونو نه راغوښتنه او د خپل ملک نه بهر ته لېږنه.

**برامده** :-(بَ + را + مْ + دَه) [فا ، اس ، مؤ ، وا] برانډه ، دالان.

**برامکه** :-(بَ + را + مِ + کَه) [ع ، اس ، مذ] د بنو عباس د وزيرانو خاندان.

**برانچ** :-(ب + را + نْ + چ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : برانچونه] شاخ، څانګه ، دا لوئي اداري وړه حصه.

**براندي** :-(بْ + را + نْ + دِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ،مؤ] د سينې او د زړۀ رګونه.

**برانډه** :-(بْ + را + نْ + ډَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : برانډې] کريکه ، رمباړه ، چيغه ، کريږه.

**برانډه** :-(بَ + را + نْ + دَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : برانډې] برآمده، دالان.

**برانډي** :-(بَ + را + نْ + ډِيْ) [انګ ، اس ، مؤ] د شرابو يو قسم.

**برانډۍ** :-(بَ + را + نْ + ډۍ) [پ ، اس ، مؤ] فوځي کوټ.

**براوۀډه** :-(ب + را + ؤ + ډه) [اف : پ (قاموس) اس ،مؤ ، وا ، ج : براوډې] ټوقه ټقاله.

**برايه** :-(بَ + را + يَه) [پ ، اس ، مؤ] بېګانۍ شپه ، تېره شپه ، برائي ، وېګا

**برائي** :-(ب + را + ئي) [پ (ګن) اس، مؤ] و ـــــ برايه.

**برايني** :-(بَ + را + يَ + نَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : برايني] بېګانے ، د تېرې شپې ، وېګانے.

ـــــ **خبره** :-(اص) بېګانۍ خبره ، د تېرې شپې خبره.

ـــــ **لوظ** :-(اص) بېګانۍ وعده ، د تېرې شپې لوظ

**برباد** :-(بَ + رْ + با + دْ) [فا ، اس ، مذ ،وا (مؤ ،وا: برباده ، ج : بربادې)] لُغ : په باد ، اص : ويجاړ ، عبث ، ضائع ، تباه ، خراب ، فضول.

چې د باد په فرس فتح کړم ملکونه
لـکه بـاد په يوه دم واړه برباد شي (صدر خان)

ـــــ **تلل** :-(اص) ضائع کېدل ، تباه کېدل ، بې فائدې ، خرڅ کېدل فضول خرابېدل.

**بربادتوب** :-(بَرباد + تو + ب) [پ ، اس ، مذ] بربادي ، بربادتيا ، بربادوالے.

**بربادتيا** :-(بَرباد + ت + يا) [پ ، اس ، مؤ] و ـــــ بربادتوب.

**بربادوالے** :-(بَ + ر + با + دَ + وا + لَے) [پ ، اس ، مذ] و ـــ بربادتوب.

**بربادول** :-(بَ + رْ + با + دَ + وَ + لْ) [پ ، مص ، مت] ضائع کول خرابول ، ويجاړول ، تباه کول ، بې فائدې خرڅ کول.

**بربادونګ** :-(بَ + رْ + با + دَ + وَ + نْ + ګْ) [اف ، پ (قاموس) حمص] و ـــــ بربادونه.

**بربادونه** :-(بَ + رْ + با + دَ + وَ + نَه) [پ ، حمص] ضائع کونه ، ويجاړونه ، خرابونه ، تباه کونه ، فضول خرڅ کونه.

**بربادوُونکے** :-(بَ + رْ + با + دَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بربادوُونکي] ويجاړوُونکے ، ضائع کوُونکے ، تباه کوُونکے ، عبث او فضول خرڅ کوُونکے.

**بربادي** :-(بَ + رْ + با + دِيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا] تباهي ، زيان ، نقصان ، اُجاړي.

**بربادۍ** :-(بَ + رْ + با + دۍ) [پ، اس ،مذ ، وا] و ـــ بربادي.

**بربادې** :-(بَ + رْ + با + دې) [پ، اس ، مؤ ، ج] خوشې خبرې ، پوچه وېنا و عبث خبرې ، فضول خبرې.

ـــــ **کول** :-(اص) خوشې خبرې کول ، پُوچه وېنا کول ، عبث خبرې کول ، فضول خبرې کول.

**بربادېدل** :-(بَ + رْ + با + دې + دَ + ل) [پ ، مص لا] ويجاړېدل ، تباه کېدل ،

ضائع کېدل ، زیاتېدل ، عبث او فضول خرڅ کېدل

**بربادېدنګ** :-( بَ + رْ + با + دې + د + نْ + ګ ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــ بربادېدنه .

**بربادېدنــــه** :-(بَ+رْ+بـــا + دې +د +نَـــه ) [ پ ، اس مـــف ، مـــذ ،وا ، ج : بربادېـدونکي ] ویجاړېـدونکے ، ضـائع کېـدونکے ، تبـاه کېـدونکے ، عبث او فضول خرڅ کېدونکے .

**بربادېدۀ** :-( بَ+ رْ + با + دې + دۀ ) [ پ ، حمص ] و ـ بربادېدنه .

**بربت** :-( بَ + رْ + بَ + تْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] کبر ،لوئي تکبر ، غرور ، فخر

**بربتے**:-( بَ + رْ +بَ + تے ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بربتـي ] مغرور ، کبرجن .

**بربتے** :-( بَ + رْ + بَ + تَے ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بربتـي ] د سور رنګ بخملي چینجے .

**بربتۍ** :-( بَ + رْ + بَ + تۍ ) [ پ (ظفر) اس ، مؤ ، وا ] بخملۍ ، سرۀ ناورې

**بر بر** :-( بَ + رْ + بَ + رْ ) [ پ ، اس ، صوت ) [ د اور د بلېدو اواز .

**بُر بُر** :-( بُ + رْ + بُ + رْ ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ] د ماشومانو یوه لوبه ده .

**بُربُـرک** :-( بُ+ رْ + بُ + رَ + کْ ) [ اف : پ (قـاموس) ص ، مـذ ] (۱) تارتـار ، پرېشانه ، د وېښتو په شان خور وور (۲) ظفر : هغه واښۀ یا خاشاک چې سکارۀ ئې نۀ وي .

**بربـرے** :-(ب + رْ + ب + رَے ) [ اف : پ (قـاموس) اس ،مـذ ، وا ، ج : بربـري ] (۱) نشان ، علم ، بېرغ (۲) تېزه تُنده هوا .

**بربـرے** :-( بُ+ رْ + بُ + رَے ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ] خشـاک او تیلي چې زر اور اخلي ، د اونو اوچې پاڼې او واښۀ چې زر سوځي .

**بربرۍ**:-( بَ + رْ + بَ + رۍ ) [ پ (ظفر) اس ، مؤ ] د بزې یو قسم چې ډېر پئـی ورکوي

**بربـرو** :-( بَ + رْ + بَ + رُوْ ) [ پ (سو) اس ، ص ، مذ ، وا ] ببر اُوښ چې لـوے وېښتۀ ئې وي او مست وي .

**بربروک** :-( بَ + رْ + بَ + رُوْ + کْ ) [ پ (وز) اس ، مذ ، وا ] و ـ ابشار .

**بربـزه** :-( بَ + رْ + ب + زَه ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بربـزې ] د دُخاني کشتۍ یا ستیم بوټ د پهیې پېډل یا څرخونړے .

**بربس** :-( بَ + رْ + بَ + سْ ) [ پ (ګن) اس ، مذ ، وا ، ج : بربسونه ] (۱) بربس ، بربست ، د کور سامان (۲) دولت ، طاقت ، شان . (۳) (اف) د وادۀ د اس د غاړې کالے (۴) دود دستور ، رواج .

**په بربس کښې کېدل** :-( اف ) اص : شته من کېدل ، د حېثیت خاوند کېدل ، زیات مال موندل ، زیات مالدار کېدل .

**د بربس خاوند** :-( اف ) اص .شتۀ من ، مالدار ، د لوے حېثیت خاوند ،

**بربست** :-( بَ + رْ + بَ + س ْ + تْ ) [ پ ، اس ، مذ ، ج : بربستونه ] و-بربس .

نۀ یاري نۀ اشنائي واړه لباس دے
چې خبـر شوم له وګړي لـه بربست (خوشحال)

**بربط** :-( بَ + رْ + بَ + طْ ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بربطونه ] د ساز یوه اله .

**بُربـک** :-( بُ + رْ + بَ + کْ ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ] (۱) داتُـوره (۲) یـو غرئیز بوټے - چې پاڼې ئې په اور تودې کړے شي او په پړسېدلي ځـاے د علاج دپاره تړلے شي .

**بربنـډ** :-( بَ + رْ + بَ + نْ + ډْ ) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج ، (مـؤ ، وا : بربنـډه ، ج : بربنډې ) ] (۱) رمنډ ، لنډاغر ، چې جامې ئې نۀ وي اغوستې (۲) بې شرم ، بې حیا ، لُوچه ، (۳) ښکاره .

ګوره بیا به څوک ادا که په زړۀ غونډه
چې دا هسې مسته درومي مخ بربنډه (رحمان)

**بربنډتوب** :-( بربنډ + تو + بْ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ] (۱) رمنډ توب لغړتوب ، بربنډتیا ، بربنډوالے (۲) بې شرمي ، بې حیائي ، لُوچه توب ، (۳) ښکاره توب ، ښکاره والے .

**بربنډتیا** :-( بربنډ + تْ + یا ) [ پ ، اس ، ص ، مؤ ] و ـ بربنډتوب .

**بربنډوالے** :-( بربنډ + وا + لَے ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ] و ـ بربنډتوب .

**بربنــډول**:-( بَ +رْ +بَ + نْ + ډَ + وُ + لْ ) [ پ ، مـص مـت ] (۱) لغـړول ، رمنډول ، د چا نه جامې ایستل (۲) شرمول ، بې عزته کول ، بې حیا کول (۳) ښکاره کول .

**بربنډونګ**:-( بَ + رْ + بَ + نْ + دَ + وَ + نْ + ګْ ) [ اف : پ (قـاموس) حمص ] و ـــــ بربنډونه .

**بربنډونه**:-( بَ + رْ + بَ + نْ + دَ + وَ + نَه ) [ پ ، حمص ] (۱) لغړونه رمنډونه ، جامې ایستنه (۲) شرمونه ، بې عزته کونه (۳) ښکاره کونه .

**بربنډ لغړ** :-( بربنډ + لَ + غَ + ړْ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج ، مؤ ، وا : بربنډه لغړه ، ج : بربنډې لغړې ] (۱) ببخي لغړ ، سکوټ لغړ ، چې جامې ئې بالکل نۀ وي اغوستې (۲) ډېر بې حیا ، ډېر بې شرم ، (۳) غریب .

**بربنډوُونکے** :-( بَ + رْ + بَ + نْ + ډَ + وُوْ + نْ + کے ) [ پ ، اس ، فـا ع ، مذ ، وا ، ج : بربنـډوُونکي ] (۱) لغـړوُونکے ، جامې ایسـتونکے (۲) شـرموُونکے ، بې عزته کوُونکے (۳) ښکاره کوُونکے .

**بربنډېدل** :-( بَ + ر + بَ + نْ + ډې + دَ + ل ) [ پ مص لا ] (۱) لغړېدل رمنډېدل ، جامې وتل (۲) شرمېدل ، بې حیا کېدل ، بې عزته کېدل (۳) ښکاره کېدل (۴) ډېر غریبېدل ، خوارېدل .

**بربنډېدنګ** :-( بَ + ر + بَ + نْ + ډې+ نْ + ګ ) [ اف : پ (قـاموس) حمص ] و ـــــ بربنډېدنه .

**بربنډېدنه** :-( بَ + ر + بَ + نْ + ډې + دَ + نه ) [ پ ، حمص ] (۱) بربنډېدۀ ، رمنډېدنه ، لغړېدنه ، بربنډېدنګ ، (۲) شرمېدنه ، بې عزته کېدنه ، بې حیا کېدنه ، (۳) ښکارېدنه ، (۴) خوارېدنه ،غریب کېدنه .

**بربنډېـدونکے** :-( بَ + رْ + بَ + نْ + ډې + دُوْ + نْ + کَے ) [ پ ، اس ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : بربنډېـدونکي ] (۱) لغړېـدونکے ، رمنډېـدونکے ، (۲) شـرمېدونکے ، بـې عزتـه کېـدونکے (۳) ښـکارېدونکے (۴) خوارېدونکے ، غریب کېدونکے .

**بربنډېدۀ**:-( بَ + رْ + بَ + نْ + ډې + دْ + دْ ) [ پ ، حمص ] و ـ بربنډېدنه .

**بربڼ** :-( بَ + رْ + بَ + ڼ ) [ اف : پ (قاموس) (ق) اس ، ص ، مذ ] لوے او پورتنے باغ .

**بربو** :-( بَ + رْ + بُوْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ] د خړ رنګ یو قسم بوټے دے .

**بربوټاني** :-( ب + رْ + بُوْۀ + ټا + ني ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ] یوه وړه شان چرمښکۍ چې په شګو کښې وي .

**بربوټه** :-( بْ + رْ + بُوْ + ټَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] یو غټ بوټے چې وړې پاڼې ئې وي .

**بربوزک**:-( بَ + رْ + بُوْ + ز + کْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] غرئیز پیاز .

**بربوړکۍ** :-( بَ + رْ + بُو + ړَ + کۍ ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ] بړبوکۍ ، د باد چکر ، هغه سیلۍ چې څرخ اوخوروي او پورته شي .

**بربونے** :-( بَ + رْ + بو + نے ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ] زول ، یو قسم مشهور واښۀ .

**برپا کول** :-( بَ + رْ + پا + کَ + وَ + لْ ) [ پ ، اص ] جوړول ، اُوچتول .

په گردش د سرګو سل فتنې برپا کا
د خونرېز تـ ه د ے پیدا د نسان چرخ (کاظم خان)

**برپي** :-(بَ+رْ+پيْ) [اف: پ (قاموس) ص] د زړورتیا او بهادرۍ د کبله مست.
ـــــ **کېدل** :- (اف) اص .د زړورتیـا او بهـادرۍ لـه کبلـه پـه نشـه کېنـې کېدل ، مستېدل

**برت** :-(بْ+رَ+تْ) [پ ، (ب،خ) اس صو] غـرت ، ډرت ، ټرت ، پرت ، د تېز اواز.

**برتن** :-(بْ+رَ+تَ+نْ) [پ (ب ، خ) اس ، ص ، مذ: (مؤ ، وا: برتنه ، ج: برتنې) ] (۱) ټرتن ، ډرتن ، غرتن ، ټرو ، برتو (۲) فضول خبرې کوونکې ، کړتو.

**برتنه** :-(بْ+رَ+تَ+نَه) [پ (ب ، خ) حمص] د برتن مؤنث.

**برتو** :-(بْ+رَ+تُوْ) [پ ، (ب ، خ) اس ، ص ، مذ] و ــ برتن.

**برته** :-(بْ+رْ+تَـه) [اف: پ (قاموس) ه بُهرتـا ، اس ، مـؤ] بـاتینګړ چې اور کېنې ورانځ کړے شوي او بغېر د غوړو نه خوارۀ کېږي.

**برتي** :-(بَ+رْ+تيْ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ] پیوند .
ـــــ **کول** :-(اف) اص.د دوۀ اوسپنو په ګرمولو سره پیوندول.

**برتي** :-(بَ+رْ+تيْ) [پ ، ه: بهرتي،اس،مؤ ، وا ، ج: برتـۍ] (۱) پـه څـۀ نوکرۍ کېنې لګېدنه ، نوکر کېدنه ، (۲) د څۀ څیز یـا دیـوال د مېنځ ډکولو دپاره ملبه.
ـــــ **کول** :-(ب) اص.په نوکرۍ کېنې لګول.نوکرول.

**برټ** :-(بْ+رْ+ټْ) [پ ، اس ، مذ] ژوره ، جوکه.

که عزت د چا کوې عزت به مومې
هرګز نۀ ننبلي په کاڼي پورې برټ (احمد دین طالب)

**بـرټش** :-(بْ+رِ+ټْ+تـشْ) [انـګ ، اس ، مـذ] (۱) برطانیـه ، انګرېـزي (۲) انګرېز یعني د برطانیه اوسېدونکے.

**برت** :-(بَ+رْ+تْ) [پ (عا) انګ: برتھ ، اس ، مذ] (۱) د رېـل ګـادي سیټ ، (۲) پېدائش ، زېږېدنه.

**برت ډې** :-(برت+ډې) [+پ (عا) انګ: برتهډے ، اس] سالګره د پېدائش ورځ.

**برت کنټرول** :-(برت+کَ+نَ+ټْ+رو+لْ) [پ (عا) انګ: برتهـ کنټرول ، اس] د بچي د پېدا کېدو د حمل بندېز ، د زیات اولاد پېدا کېدو بندول.

**برج** :-(بْ+رَ+جْ) [پ ، فا: بُرج ، اس ، مذ ، وا ، ج: برجُونـه: برجان] بـرځ ، مانړۍ ، ، ټاپو.

**بُـرج** :-(بُ+رْ+جْ) [ع ، اس ، مـذ ، وا ، ج: بُرجونـه] هېئت دانـانو د اسمان چکر په دولسو برابرو حصو کېنې تقسیم کړے دے .هرې حصې ته برج وئیلے شي .نمر سترګه د یوې میاشتې دپاره په یو برج کېنې وي .دا برجونه د تاثیره په لحاظ په څلورو غټو حصو کېنې تقسیم کړي شوي دي.چې په هره حصه کېنې درې وارۀ برجونه وي.او هر یو غټ برج د یو موسم دپاره وي.د غټو برجونو نومونه برج آبي ، برج آتشي ، برج بـادي او برج خاکي دي د وړو برجونو نومونـه دا دي.حمـل،ثور،جوزا ، سرطان ، اسد ، سنبله ، میزان ، عقرب ، قوس ، جدي ، دلو ، حوت.

بل سر مه څه په دلبرو کېنې ئې غوارۀ
اووۀ ستوري د اسمـان دولس برجونه (خوشحال)

ـــــ **ابي** :-(اس) په څلورو غټو برجونو کېنې یو برج چې پکښې سرطان ، عقرب او حوت وارۀ برجونه دي.
ـــــ **اتشي** :-(اس) په دې غټ برج کېنې اسد ، حمل ، قـوس ، وارۀ برجونه دي.
ـــــ **اسد** :-(اس) د آسـمان د چکـر پـنځم بـرج چـې شـکل ئـې د زمـري غوندې وي.

اسد ،سنبله امـــرداد شـــهریوردي
پښتو سنبله وئېږي اسد وګڼه زمرے (خوشحال)

ـــــ **بـادي** :-(اس) پـه دې غـټ بـرج کېنـې جـوزا ، میـزان او دلـو وارۀ برجونه دي.
ـــــ **ثور** :-(اس) د اسمان د چکر دویم برج چې د غوڅکي یا غوائي په شکل وي.
ـــــ **جدي** :-(اس) د اسمان د چکر لسم برج چې شکل ئې د ورغـومي یـا کچېکي وي .
ـــــ **جوزا** :-(اس) د اسـمان د چکـر دریم بـرج چـې شـکل ئـې ښینـور پـه رنګ وي.

جوزا ،سرطان،خرداد تېر دي په حساب کېنې
پښتو ئې ښینوراوکـــنې کبر حـــساب دے (خوشحال)

ـــــ **حمـل** :-(اس) د اسمان د چکر اول بـرج دے .دا د وُرې یـا ګـډورې پـه شکل وي .کله چې دنمر سترګه په دې برج کېنې داخله شي نو بهـار راشي.

حمـــل،ثوروا دوارۀ فروردیـــن دار دي
پښتو به درته وایم اول دُرے دویم غوڅکے (خوشحال)

ـــــ **حوت** :-(اس) د اسمان د چکر دولسم برج چې شکل ئې د ماهي په شان دے.
ـــــ **خـاکي** :-(اس) پـه دې غـټ بـرج کېنـې ثـور ، سـنبل او جـدي وارۀ برجونه دي.
ـــــ **دلو** :-(اس) د اسمان د چکر یوؤلسم برج چې شکل ئې د بوکې په شان دے.

چې دلو،حوت ووایې یو بهمن بل اسفندار کړه
پښتـــو لـــه مانه واوره یو بوکـــه دوهم ماهي (خوشحال)

ـــــ **سرطان** :-(اس) د اسمان د چکر څلورم برج دے چې د کُنې کبر په شکل دے.
ـــــ **سُنبله** :-(اس) د اسمان د چکر شپږم بـرج چـې شـکل ئـې د وږي پـه شـان وي.
ـــــ **عقرب** :-(اس) د اسمان د چکر اتم برج چې شکل ئې د لړم په شان وي.
ـــــ **قوس** :-(اس) د اسمان د چکر نهم برج چې شکل ئې د لیندې په شـان وي.

لینده درغومے څۀ دي لادا واوره درته وایم
یو قـوس دویـم جدي دوارۀ دادي ،اذر دي (خوشال)

ـــــ **میزان** :-(اس) د اسمان د چکر اووم برج چې شکل ئې د تلې په شان وي.

مـــیزان،عـــقرب دا دوارۀ مهربان کړه
پښتو تله لړم دے دا دې یاد لرې سرے (خوشحال)

**برج** :-(بْ+رِ+جْ) [انګ ، اس ، مذ] د تاش یوه لوبه.

**بـرج** :-(بَ+رَ+جْ) [اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: برجونـه] د اونـې نرۍ پرده (پوست) چې عموماً د لیکلو دپاره استعمالېږي.

**برج بهاشا** :-(بْ+رِ+جْ+بها+شا) [ه ، اس ، مؤ ، وا] د هندوستان یوه پخوانۍ ژبه.

**بُرج هري سنګهه** :-(اس مر) د پېښور یونیورسټۍ نه قبلې اړخ تـه یـوه قلاګۍ چې هري سنګهه نلوه جوړه کړې وه.اوس د پولیس تانه ده.

**بـرجس** :-(بَ+رْ+جَ+سْ) [پ (عـا) انـګ ، بریچـز ، اس ، مـذ ،وا ، ج: برجسونا] یو تنګ او چُست قسم پتلون چې د اس د سورلۍ پـه وخت اغوستلے کېږي.

**برجاؤ** :-(بَ+رْ+جاؤ) [اف: پ (قـاموس) صد ، مـذ] ډک ، پُـور ، معمـور ، برجک ، برجق.

**برجاؤ توب** :-(بَرجاؤ+تو+ب) [اف: پ (قاموس) اس ،مذ] ډک والے ، معموري.

**برجاوونکې** :-(بَ+رْ+جا+وَ+وُ+نْ+کَې) [اف: پ (قاموس) اس فا ع، مذ، وا، ج: برجاوونکي] ډکوُونکې، معمور کوونکې، پور کوونکې.

**برجاوول** :-(بَ+رْ+جا+وَ+وَ+لْ) [اف: پ (قاموس) مص مت] ډکول، پُور کول، معمور کول.

**بر جاوونه** :-(بَ+رْ+جا+وَ+و+نَه) [اف: پ (قاموس) حمص] ډکونه، پُور کونه، معمورونه.

**برجاوېدل** :-(بَ+رْ+جا+وې+دَ+لْ) [اف: پ (قاموس) مص لا] ډکېدل، پُور کېدل، معمور کېدل.

**برجاوېدنګ** :-(بَ+رْ+جا+وې+دَ+نْ+ګ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـــ برجاوېدنه.

**برجاوېدنه** :-(بَ+رْ+جا+وې+دْ+نَه) [اف: پ (قاموس) حمص] برجاوېدنګ، ډکېدنه، پُور کېدنه، معمورېدنه، برجاوېدهٔ.

**برجاوېدونکې** :-(بَ+رْ+جا+وې+دُوْ+نْ+کَې) [اف: پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج: برجاوېدونکي] ډکېدونکې، پُور کېدونکې، معمورېدونکې.

**برجاوېدهٔ** :-(بَ+رْ+جا+وې+دهٔ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـــ برجاوېدنه.

**برجتو** :-(بَ+رْ+جْ+تُوْ) [اف: پ (قاموس) ص] ورانکاره سړے، فسادي سړے، هغه څوک چې دوه سره جنګوي.

**برجد**:-(بَ+رْ+جَ+دْ) [اف: پ (قاموس) ص، مذ] نبغ ولاړ، په ځاے ولاړ.

**برجغ** :-(بَ+رْ+جَ+غْ) [پ (یوسف) ص، مذ] و ـــ برجاؤ.

**برجق** :-(بَ+رْ+جَ+قْ) [پ (روسي قاموس) ص، مذ] و ـــ برجاؤ.

**برجک** :-(بَ+رْ+جَ+کْ) [اف: پ (قاموس) ص، مذ] و ـــ برجاؤ س

**برجو** :-(بَ+رْ+جُوْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: برجوګان] (۱) د څرخ کانې، سان (۲) بارخو، انتګي، بغن (۳) د مصالحې کانې.

**بُرجي**:-(بُ+رْ+جَي) [پ، اس، مؤ، وا] د حد د تقسیم دپاره نخښه.

**برځ** :-(بْ+رَ+دْزْ) [پ (ګن) اس، مذ، وا، ج: برځان] (و ـــ برج، (۲) برځه، پیش ناف، پردهٔ شکم، پردهٔ خالي ګاه.

**برځوړے** :-(بَ+رْ+دزو+ړے) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] د مکان د چت هغه چجه چې د دروي نه جوړه وي او د پرنالې یا تری کار هم ترې اخستے شي.

**برځه** :-(بْ+رَ+دْزَه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] و ـــ برځ.

**برځي** :-(بُ+رْ+دْزَي) [پ، اس، مؤ، وا، ج] و ـــ بُرجي.

**برچکے** :-(بَ+رْ+چَ+کَے) [پ، اس، مذ، وا، ج: برچکي) د پړکې یا لندۍ سکنجه کړکے، هغه ورکوټے شان ډکے چې د پړکې په سر کښې د سُوري سره معمولي شان نښلولے شوے وي او پاس تارونه پرې پراته وي.

کــه پړکه مې د محنت وه ورته اېښې
په څو ځله ئې مات کړے برچکے دے　　(علیخان)

**برچه** :-(بَ+رْ+چَه) [پ، ه، برچها، برچهي، اس، مؤ، وا، ج: برچې] باله، بلم، نېزه.

**برڅوړي** :-(بَ+رْ+څو+ړيْ) [اف: پ (قاموس) اس، ج] د لرګي بُوره، هغه بُوره چې په اره د لرګي څېرلو په وخت راوزي.

**برڅېرن** :-(بَ+رْ+څې+رَ+نْ) [پ، ص، مذ (مؤ، وا، برڅېرنه، ج: برڅېرني) ] څنګځن، معمولي، ځرګند.

هم په دا چې ئې پرهار برڅېرن نهٔ وي
اوښکې نهٔ شي حکیمن خونګ د زړهٔ　　(علیخان)

**برڅېرول** :-(بَ+رْ+څې+رَ+وَ+لْ) [پ، مص مت] ښکاره کول، ځرګندول، جوتول.

**برڅېره** :-(بَ+رْ+څې+رَه) [پ، ص] ځرګند، ښکاره، جوت.

هغه دم لکه غرګل قبلې ته شا کړي
کـــه هندو لکه مشرق کا زر برڅېره　　(کاظم خان)

ـــ **کول** :-(مص مت. ځرګندول، ښکاره کول، جوتول،

ـــ **کېدل** :-(مص تر لا. ځرګندېدل، جوتېدل، څنګځن کېدل.

**رابرڅېره** :-(اس مر) ځرګند، ښکاره، جوت.

اشـــنائي دې ګېیـــنه ده کـــه شکره
چې خوارهٔ یې په څو رنګه رابرڅېر دي　　(خوشحال)

**برڅېرېدل** :-(بَ+رْ+څې+رې+دَ+لْ) [پ، مص، لا] (۱) ښکاره کېدل، ځرګندېدل، جوتېدل، (۲) څنګځن کېدل.

**برحق** :-(بَ+رْ+حَ+قْ) [فا، اس، مذ] صحیح، رښتیا، په حقه.

**برخاست** :-(بَ+رْ+خا+سْ+ت) [فا، اس، مذ] (۱) ختم، بند لکه :- "عدالت برخاست شو" (۲) موقوف، د کار نه فارغول یا شړل، ډسچارج، لکه :- "فلانے له نوکرۍ نه برخاست شو" (۳) پاڅېدل، اوچتېدل.

ـــ **کول** :-مص مت (۱) بندول، ختمول، (۲) موقوف کول، د نوکرۍ نه شړل، ډسچارج کول.

ـــ **کېدل** :-مص لا. (۱) بندېدل، ختمېدل (۲) موقوف کېدل، د نوکرۍ نه ډسچارج کېدل یا شړلے کېدل.

**برخاستونه** :-(بَر+خا+سْ+تَ+وْ+نه) [پ، حمص] (۱) ختمونه بندکونه (۲) د نوکرۍ نه شړنه.

**برخاستېدنه** :-(بَر+خا+سْ+تې+دْ+نَه) [پ، حمص] (۱) ختمېدنه بندېدنه، (۲) د نوکرۍ نه وتنه، ډسچارج کېدنه.

**بـــرخلاف** :-(بَ+رْ+خِ+لا+ف) [فـا، اس، مـذ (مـؤ، وا: برخلافـه، ج: برخلافې) ] (۱) مخالف، دښمن، (۲) اُلټه. برعکس، اپوټه بل شان.

**برخلافت**:-(بَر+خِ+لا+فَ+تْ) [پ، اس، مذ] مخالفت، برخلافي، زړهٔ بدي، عداوت، دښمني.

**برخلافول** :-(بَر+خِ+لا+فَ+و+لْ) [پ، مص مت] مخالف کول، دښمن جوړول، زړهٔ بده کول.

**برخلافي** :-(بَر+خِ+لا+فِيْ) [پ، اس، مؤ، وا، ج: برخلافۍ] و ـــ برخلافت.

ـــ **راتلل**:-اص. عداوت جوړېدل، زړهٔ بدي پیدا کېدل، دښمني پیدا کېدل.

ـــ **لرل** :-اص. (۱) اختلاف لرل (۲) دښمني لرل، عداوت لرل.

**برخلافېدل** :-(بَر+خِ+لا+فې+د+لْ) [پ، مص لا] مخالف کېدل، زړهٔ بده کېدل، دښمن جوړېدل.

**برخلیک** :-(بَر+خَ+لِيْ+کْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] قسمت، تقدیر، نصیبه.

**برخو** :-(بَ+رْ+خُو) [پ، اس، مذ] و ـــ بارخو.

**برخو برخو** :-(بَ+رْ+خُوْ+بَ+رْ+خُوْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] حصه حصه، برخې برخې.

ـــ **کول**:- اف. مص مت، حصې حصې کول، برخې کول، تقسیمول.

ـــ **کېدل** :- (اف) مص لا، حصې حصې کېدل، برخې کېدل، تقسیمېدل.

**برخــور** :-(بَ+رْ+خَ+وْ+رْ) [پ، اس، ص، مـذ، (مـؤ، وا: برخـوره، ج: برخورې) ] خوش قسمته، خوش نصیبه، ګټه ور.

**برخوردار** :-(بر+خُوْ+رْ+د+رْ) [فـا، اس، مـذ، وا، ج: برخورداران] (۱) بچے، زوے (۲) د پـردي ماشـوم دپـاره د مینـې غـږ (۳) خـوش قسمت، خوش نصیب، اقبال مند.

زۀ خو ستا له سروې قده برخوردار شوم
کــه خر ځو سروه بلـــلې شـــي بې بر ه (حميد)

(۴) تابعدار ، فرمانبردار۔

**برخــورداري** :-(بَ+رْ+خُـوْ+رْ+دا+رِيْ) [فـا ،اس،مؤ ، وا] (۱) زوے والـے ، عزيز ولي (۲) تابعداري ، فرمانبرداري۔

**برخه**:-(بَ+رْ+خَه) [پ (ب ، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : برخې] و ـــ برخه

**برخه** :-(بْ+رَ+خَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : برخې] (۱) برخه ، بخره ، حصه ۔(۲) قسمت ، نصيب۔

**ـــــ اخستل** :- اص ۔(۱) حصه اخستل ، خپل حق اخستل ، (۲) پـه څۀ كـار كښې شامليدل ، (۳) د نېک سړي نه بخره موندل۔

**ـــــ جوړول** :- اص۔حصه جوړول ، بخره جوړول ، تقسيم كول ۔

**ـــــ كول** :- اص (۱) حصې كول ، تقسيمول ، وېشل (۲) پـه وېش كښې د چا ګډول ، حصه دار جوړول۔

**ـــــ كېدل** :- اص ۔(۱) حصه موندل ، پـه نصيب كښې راتلل (۲) تقسيمېدل ، بخرې كېدل۔

**ـــــ موندل** :- اص۔(۱) حصه موندل ، خپله حصه حاصلول (۲) د نېک سړي نه بخره موندل۔

**ـــــ موندونكے** :- اص (۱) حصه موندونكے، پـه وېش كښې بخره حاصلوونكے، حصه دار كېدونكے (۲) د نېک سړي نـه بخره حاصلوونكے ۔

**ـــــ ميندل** :- اص ، و ـــــ برخه موندل۔

**ـــــ ميندونكے** :- اص۔و ـــــ برخه موندونكے ۔

**ـــــ وركول** :- اص ۔(۱) حصه وركول ، د چا خپل حق وركول ، (۲) كاميابول (۳) د برخې خاوند كول۔

**ـــــ وړل** :- اص (۱) حصه اوچتول ، خپل حق موندل ، (۲) خپل قسمت رسېدل (۳) چا ته د هغۀ حصه رسول يا وړل۔

**بده برخه** :-(اص) بدقسمتي ، بدنصيبي۔

**بد برخې** :-(بَد + بَ+ رْ+خې) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بدبرخي] بد قسمت ، بد نصيب۔

**په برخه** :-(اص) (۱) په حصه ، په بخره (۲) په قسمت ، په نصيب۔

**ـــــ خوړل** :- اص ، پـه حصه خوړل ، د چا پټے يازمكه پـه حصه د كروندې دپاره اخستل ، په برخه كرل۔

**ـــــ رسېدل**:- اص (۱) په حصه كښې رسېدل (۲) په قسمت موندل نصيب كېدل

**ـــــ كرل** :- اص۔و ـــــ په برخه خوړل۔

**ـــــ كول** :- اص (۱) حصه حصه كول ، تقسيمول ، (۲) چاتـه سپارل د چا پـه نصيب كول۔

**ـــــ كېدل** :- اص ، (۱) حصې حصې كېدل، تقسيمېدل ، (۲) د چا په نصيب كېدل ، د چا قسمت كېدل۔

**دبرخې خاوند** :- لُغ ۔د حصې خاوند شريک،حصه دار، اص : بزرګ ، زبرګ ، نېک سړے ، خدائے تعالٰى ته رسېدلے ۔

**دبرخې خاونده** :-(اص) د برخې خاوند د تانيث صيغه۔

**برخې نه ايستل** :-(اص) (۱) د حصې نه محرمول (۲) د ولايت يا بزرګۍ د درجې نه محروموول۔

**برخه برخه** :-(برخه + برخه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : برخې برخې] حصه حصه، بخره بخره۔

**ـــــ كول**:- اص ، حصې حصې كول ، بخرې كول ، وېشل، تقسيمول۔

**ـــــ كېدل** :- اص ۔حصې حصې كېدل ، بخرې كېدل، تقسيمېدل۔

**برخه خور** :-(برخه + خو + رْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ،وا ، ج : برخه خوارۀ ، برخه خواران (مؤ ، وا: برخه خوره ، ج : برخه خورې)] (۱) حصه دار ، شريک (۲) هغه زميدار چې زمكه ئې بل نه پـه حصه د كروندې دپاره اخستې وي۔

**برخه من** :-(برخه + مْ+ نْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : (مؤ ، وا : برخه منه ، ج : برخه منې)] قسمتي ، خوش نصيب ، چې بخره ئې موندلې وي۔

**برخيا**:-(بَ+ رْ+ خِ+ يا) [ع ، اس ، مذ ، وا] د سليمان عليه السلام د آصف نوم وزير پلار۔

نۀ سليمان ؤ نۀ تخت ؤ
نـۀ اصـف نۀ برخـيا (خوشحال)

**برخيز**:-(بَ +رْ+خِيْ) [پ ، اس ، مذ] حصه دار ، په حصه كښې شريک

**برداشت** :-(بَ+ رْ+ دا + شْ+ تْ) [فا ، اس ، مذ ] زغم ، صبر

**ـــــ كول** :- زغمل ، اوچتول ، په ځان تېرول۔

**بُردبار** :-(بُ+ رْ+ دْ+ با + رْ) [فـا ، اس ،مذ(مؤ ، وا: بردباره ، ج : بُردبارې)] صابر ، زغم كوُونكے ، برداشت كوُونكے ، په ځان سختې تېروُونكے۔

**بردباري** :-(بُ+ رْ+ دْ+ با + رِيْ) [فـا ، اس ، مؤ ، وا] صبر ، زغم ، برداشت ، تحمل۔

**بردم** :-(بَ + رْ+ دَ + مْ) [پ ، ص ،مذ (مؤ ، وا: بردمه ، ج : بردمې] پړسېدلے ، ډډ بډ ، ډک ، ترپېزو ۔

**بردمول**:-(بَ+ رْ+ دَ + مَ+ وَ + لْ) [پ ، مص مت] پړسول، ډډول ، ډكول۔

**بردمېدل** :-(بَ +رْ+ دَ + مې + دَ + لْ) [پ ، مص لا] پړسېدل ، ډډېدل ، ډكېدل۔

**بـردوان** :-(بَ+ رْ+ دْ+ وا+ نْ) [پ : وردها مانـا ، اس ، مـذ ، وا] د قبلئيز بنګال يوه ضلع ، مشهور بنګالي شاعر قاضي نذر الاسلام په دې ضلع كښې په چروليا نومې كلي كښې پيدا شوے ؤ۔

**برده** :-(بَ + رْ+ دَه) [ع ، اس ، مذ ، وا] غلام ، مرئيے ، قېدي ، بندي۔

**بـرده فـروش** :-(بَرده + فَ+ رو + شْ) [فـا تـر ، اس ، ص ، مـذ ،وا ، ج: بـرده فروشـان ، (مـؤ ، وا: بـرده فروشـه ، ج بـرده فروشـې)] د غلامـانو خرڅوُونكے ، د انسانانو د خرڅولو كار كوُونكے۔

**برده فروشي** :-(برده + فَ+ رو+ شي) [فـا ، اس ، مؤ] د غلامانو سوداګري ، د انسانانو خرڅونه۔

**بـردے** :-(بَ+ رْ+ دَے) [اف : پ (قـاموس) ا ، مـذ ، (مؤ: بـردۍ)] چسپوک ، سرېښند

**بـرړول** :-(بَ+ رْ+ ړَ+ وَ+ لْ) [پ ، مـص مـت] (۱) د وار راوړي يـا د ګرمې ګډې يا بزې د ايندۀ تېرول (۲) د مست اوښ تالو وهـل ، د مستۍ اواز ايستل (۳) د كنځلو يا ښېرو په ډول وئيلے كېږي۔

**برړونـه** :-(بَ+ رْ+ ړَ+ وَ+ نَـه) [پ ، حمـص] (۱) د اوښ تـالو وهلـو دپاره تيارونه (۲) د كنځلو يا ښېرو په ډول وئيلے شي۔

**برړه** :-(بْ+ رْ+ ړَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] يو قسم مارغۀ۔

**بـرړه** :-(بَ+ رْ+ ړه) [پ ، اس ، مؤ ،وا ، ج : برړې] (۱) لويه چغه ، رمباړه ، ژړا ، فرياد ، په زوره زوره خندا ، د مست اوښ اواز۔

**ـــــ ايستل** :- اص۔ لويه چغه ايستل ، په چغه ژړل ، په چغو ژړل۔

**برړې وهل** :- اص۔په لويو لويو چغو ژړل ، په لويه چغه شور زوږ كول۔

**بـرړې** :-(بَ+ رْ+ ړې) [پ ، (ب ، خ) اس ، مـذ ، وا ، ج : بـرړي] د ونبـو وركوټے شان ګېډه ے ، وانبۀ رېبُونكي اكثر دوه برړي يو ځاے كړي او يو ګېډه ے ترې جوړ كړي۔

**بر پړدل** :-(بَ + رْ + پړِ + دَ + ل) [پ ، مص لا] (۱) د اوښ د مستۍ په حالت کښې تالو وهل ، د مستۍ اواز ایستل (۲) په زوره زوره فضولې او عبث خبرې کول۔

**بر پړدنه** :-(بَ + رْ + پړِ + د + نه) [پ ، حمص] (۱) د اوښ د مستۍ په حالت کښې تالو وهنه ، (۲) په زور زور فضولې او عبث خبرې کونه۔

**بر زاله** :-(بَ + رْ + زا + لَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : برزالې] بائهٔ ، بربنه۔

**برزخ** :-(بَ + رْ + زَ + خْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] لُغ : حد ، پرده ، اړ ، اص: (۱) جنت او د دوزخ مېنځ (۲) د مرګ او قیامت مېنځنۍ زمانه

د لوے حشر علامت شي

په برزخ کښې قیامت شي (کاظم خان)

(۳) د دوؤ مختلفو څیزونو یا حالتونو مېنځ۔

**برزنګ** :-(ب + رْ + زَ + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : برزنګونه] د تال یا ښانک په نمونه لوے لوښے چې په مېنځ کښې ئې خوراک پروت وي او ګېر چاپېر ترې نه اوبهٔ وي۔ چې مېږتون هم ورته وائي۔

**برزنګے** :-(بَ + رْ + زَ + نْ + ګے) [پ ، (ظفر) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : برزنګي] هغه غټ سړے چې دماغ ئې سم کار نۀ کوي۔ او لـه دې کبله له خطرې نه ویره نۀ کوي۔

**برزو** :-(بَ + رْ + زُوْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : برزوګان] یو قسم پشمي لوے برجس۔

**برسات** :-(بَ + رْ + سا + تْ) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : برساتونه] د پشکال د باران موسم۔

**برساتونه ماتېدل** :- اص۔ د هندوستان د پشکال بارانونه شروع کېدل

**برساتي** :-(بَ + رْ + سا + تِيْ) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : برساتۍ] باران کوټ ، بارانۍ۔

**برساتي** :-(بَ + رْ + سا + تی) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج] و ـــ برساتي

**برساتي** :-(بَ + رْ + سا + تِيْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : برساتیان] (۱) هغه څوک چې کور کلے پرېږدي او په سفر کښې خوشحاله ګرځي (۲) لُوچه ، فضول ، خرڅ

ـــ **کېدل** :- اص (۱) کور کلے پرېښول (۲) لُوچه کېدل ، فضول خرڅ کېدل۔

**برستن** :-(بْ + رَ + سْ + تَ + نْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : برستنې] برستن ، توشک ، شیرک ، کنځڼ ، نالۍ۔

**برسر** :-(بَ + رْ + سَ + رْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، : برسران] د کالج یا تعلیمي ادارې خزانچي۔

**برسنده** :-(بَ + رْ + سَ + نْ + ده) [پ (سو) اس ، مؤ ، وا ، ج : برسندې] د کچالو غټه دانه چې بېج ورېورې ښښتے وي۔

**برسنډې** :-(بَ + رْ + سَ + نْ + ډې) [پ ، اس ، مؤ ، ج] (۱) د نیلوفر یا کنول د ګُل ځانګې او جرړې چې د ترکارۍ په ډول پخولے شي (۲) هر پرسېدلے څیز

**برسېر** :-(بَ + رْ + سې + رْ) [پ ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا : برسېره ، ج : برسېرې)] ښکاره ، ظاهر ، جوت ، څرګند ، دپاسه

**برسېرن** :-(بَ + رْ + سې + رَ + نْ) [پ ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا : برسېرنه ، ج : برسېرنې)] پورته ، څرګند ، اوپره ، دپاسه ، سرسري۔

دا ګمان خو مه کړه چې به زر تر زره روغ شم

ستـا دغـــم شتی هســـې نـــه ده برسېرن (علیخان)

**برسېرول** :-(بَ + رْ + سې + رَ + وَ + لْ) [پ ، مص مت] څرګندول ، ښکاره کول ، جوتول۔

**برسېرونګ** :-(بَ + رْ + سې + رَ + وَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ برسېرونه۔

**برسېرونه** :-(بَ + رْ + سې + رَ + و + نَه) [پ ، حمص] ښکاره کونه څرګندونه ، جوتونه

**برسېروونکے** :-(بَ + رْ + سې + رَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : برسېروُونکي] ښکاره کوُونکے ، څرګندوُونکے ، جوتووُنکے

**برسېره** :-(بَ + رْ + سې + رَه) [پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : برسېرې] (۱) ښکاره ، څرګند ، جوته (۲) سوکه ، اسانه (۳) پاس پاس ، معمولي۔

ـــ **کول** :- اص۔ ښکاره کول ، څرګندول ، جوتول۔

ـــ **کېدل** :- اص (۱) ښکاره کېدل ، څرګندېدل ، جوتېدل (۲) سوکه کېدل ، اسانېدل (۳) پاس پاس تېرېدل ، (دا په داسې حال کښې وئیلے شي چې ګولۍ یا د بل شي ګذار ډېر معمولي نشان په بدن پرېږدي)۔

**برسېرېدل** :-(بَ + رْ + سې + رې + دَ + لْ) [پ ، مص لا] (۱) ښکاره کېدل ، څرګندېدل ، جوتېدل (۲) سوکه کېدل ، اسانېدل (۳) پاس پاس تېرېدل

**برسېرېدنګ** :-(بَ + رْ + سې + رې + دَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ برسېرېدنه۔

**برسېرېدنه** :-(بَ + رْ + سې + رې + دْ + نه) [پ ، حمص] ظاهرېدنه ، جوتېدنه۔

**برسېرېدُونکے** :-(بَ + رْ + سې + رې + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، مف ، مذ ، وا ، ج : برسېرېدُونکي] ښکاره کېدونکے ، څرګندېدونکے ، ظاهرېدونکے ، جوتېدونکے۔

**برش** :-(بْ + رَ + شْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : برشونه ، برشینه] (۱) د جامو یا د پیزار د صفا کولو څیز چې د لرګي او وېښتو او نیلون نه جوړ وي (۲) د سړي جُثه ، تکړه والے۔

**په برش کښې** :- اص۔ په مزه کښې ، تکړه تیار۔

**برص** :-(بَ + رْ + صْ) [ع ، اس ، مذ ج یوه بیماري ده چې په بدن سپین سپین داغونه جوړ شي ، برګ مرض۔

**برصي** :-(بَ + رْ + صِيْ) [پ تر ، اس ص ، مذ ، مؤ] برګ ، برګے ، د برص په مرض کښې ګېر یا اخته۔

**برطرف** :-(بَ + رْ + طَ + رَ + فْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا : برطرفه ، ج : برطرفې)] یو خوا ته ، یوې ډډې ته ، بېل ، جدا برخاست۔

ـــ **کول** :- اص۔ د ملازمت نه ایستل یا لرې کول ، برخاست کول۔

ـــ **کېدل** :- اص۔ د ملازمت نه لرې کېدل ، برخاست کېدل۔

**برطرفي** :-(بَر + طَ + رَ + فِيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : برطرفۍ] موقوفي ، معزولي ، د عهدې یا نوکرۍ نه ایستنه ، برخاستونه لرې کونه۔

**برعکس**:-(بَر + عَ + کَ + سْ) [فا ، ع ، ص ، مذ] خلاف ، اړولے ، بل شان ، اُلټه۔

**برغ** :-(بْ + رَ + غْ) [پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا : برغه ، ج : برغې)] (۱) غبرګ ، برغد ، دوه تهیز (۲) جُخت ، ورسره ، نزدې۔

**برغ** :-(بْ + رْ + غْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] سکنجبین ، شکنجبین۔

**برغاست** :-(بَر + غا + سْ + تْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] غم۔

**برغټ** :-(بَر + غُ + ټْ) [پ (ظفر) اس ، مذ ، وا ، ج : برغټان] برغوټ پیشو پرانګ ، ځنګلي پیش ، ځنګلي ببلوکے۔

**برغټي**:-(بَـر + غُ + ټِـي) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : برغُټـي] انځران ، انځیر ، کنجران ، کنجیر ، بغوتي۔

**برغد** :-(بْ + رَ + غْ + دْ) [پ ، اس ، مذ] و ـــ برغ۔

**برغدبرغد**:- اص۔ جُخت جُخت ، نزدې نزدې ، اُوړه په اُوړه ، برغد په برغد۔

**برغد په برغد** :- اص۔ و ـــ برغد برغد۔

**برغد تلل** :-(بَرغد + تْ+ لَ+ لْ) [پ ، مص مت] (۱) جوړه تلل ، گډتلل ، اوړه په اوړه تلل (۲) په یو ځاے د دنیا نه کوچ کول.

**په برغدو ړوند**:- اص.(۱) چې دواړه سترګې ئې ړندې وي (۲) بې پروا ، په خپل سر.

**برغدول** :-(بْ+ رَ+ غْ+ دَ+ وَ+ لْ) [پ ، مص مت] (۱) غبرګول ، برغول ، تهه کول (۲) د خبرې تکرار کول ، خبره اړول.

**برغدون**:-(بْ+ رَ+ غْ+ دُوْ+ نْ) [پ ، اس ، ص ، مذ] غبرګون، جوړې.

**برغدونه** :-(بْ+ رَ+ غْ+ دَ+ وَ+ نه) [پ ، حمص] (۱) برغونه ، غبرګونه ، تهه کونه (۲) د خبرې اړونه یا تکرار کونه.

**برغدېدل** :-(بْ+ رْ+ غْ+ دې+ دَ+ لْ) [پ ، مص لا] برغېدل ، غبرګېدل ، دوه تهیزه کېدل.

**برغدېدنه**:-(بْ+ رَ+ غْ+ دې+ دْ+ نه) [پ حمص] (۱) برغېدنه ، برغدېدۀ ، غبرګېدنه ، تهه کېدنه (۲) د خبرې اړېدنه یا تکرار کېدنه

**برغدېدُونکے** :-(بَ+ رَ+ غْ+ دې+ دُوْ+ نْ+ کَے) [پ ، اس ، مف ، مذ ، وا ، ج : برغدېدُونکي] برغېدُونکے ، غبرګ کېدُونکے ، دوه تهیز کېدُونکے.

**برغدېدۀ** :-(بْ+ رَ+ غْ+ دې+ دۀ) [پ ، حمص] و ـــ برغدېدنه

**برغـزووي** :-(بَ+ رْ+ غَ+ زُوْ+ وِيْ) [اف : پ (قـاموس) ص] بلغـزو، افلتـې پفلتې ، اوتې بوتې ، بېهوده خبرې ، فضول ږغېدنه.

**ـــــ ویـل** :- اف) اص ۔اوتـې بـوتې ویـل ، بلغـزو وهـل ، افلتـې پفلتـې ویـل ۔ بېهوده خبرې کول ، فضول ږغېدۀ.

**برغنجـور** :-(بَ+ رْ+ غَ+ نْ+ جُـوْ+ رْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مـذ] کمزور، ماندۀ ، ډنګر ، اېن ، بیمار ، رنځور.

**برغنډ** :-(بَ+ رْ+ غَ+ نْ+ ډْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: برغنډونـه] هغه زخم چې په تبر یا کانړي جوړ شوي وي.

تبر ساعت به بیا راسنون نۀ شي په ببرته
کـــه دا روغ مې په مېنځ دوه برغـنډه (عبدالعظیم)

**ـــــ کول** :- مص مت.په لرګي کښې په تبر غار جوړول.

**ـــــ کېدل** :- مص لا.په لرګي کښې په تبر غار جوړېدل.

**برغنډے** :-(بَ+ رْ+ غَ+ نْ+ ډَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د کر جوګه یوه وړه ټکړه چې د نورې زمکې نه بېله وي.

**برغنـډے** :-(بَ+ رْ+ غَ+ نْ+ ډَے) [پ (سو) اس ، مـذ ، وا ، ج : برغنـډي] د مهې یا کب ډکره یا ټُکره.

**برغنه** :-(بَ+ رْ+ غ+ نَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] یو قسم وُنه چې نرۍ اوږدې ښاخکې لري او د هغو نه ټوکرۍ یا شکورونه جوړولے شي.

**برغو** :-(بَ+ رْ+ غُوْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : برغوګان] (۱) هغه کلکه او تېرۀ برمه چې په اوسپنه کښې سورے پرې کولے شي.مجازاً برچهي (۲) د ټوپک د نالۍ صفا کولو سیخ (۳) ښکر ، لويه توري.

په دا څۀ که د ښنګش راته ډنګ ډنګ دے
زۀ هم ښۀ یم زما هم برغو تر شـــنګ دے (خوشحال)

**ـــــ کول** :- (سو) مص تر ، د ټوپک د نالۍ زاړۀ رخونه نوي کول.

**برغو** :-(بَ + رْ+ غو) [اف : پ (قاموس) ص] دا ټکے د وهل توري سره و ځاے استعمالېږي چې د داسې کس حالت څرګندوي.د چالاتدني اعضاء چې بربنډ وي.

**بغوالے** :-(بْ+ رَ+ غْ+ وا+ لَے) [پ ، ص ، مـذ] برغـدوالے ، غبرګـوالے ، جُختوالے ، نزدې والے.

**بروټ** :-(بَ + رْ+ غَ+ و+ ټْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج: برغوټان ( مؤ ، وا: برغوټه ، ج : برغوټې) ] و ـــ برغوټ.

**بغوټے** :-(بَ+ رْ+ غُـو+ ټے) [اف : پ (قاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : برغـوټي] چله ، ګوشواره (۲) و ـــ برغټې.

**برغوڅه** :-(بَ + رْ+ غُوْ+ څَـه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: برغـوڅې] غرئیز وانبۀ چې د کاڼو په مېنځ کښې راټوکېږي.

**برغـــوړے** :-(بَ+ رْ+ غْ+ و+ ړے) [اف : پ (قـــاموس) اس ، مـــذ ، وا ، ج : برغوړي] د غوړېونو کالے یا زېور.

**برغول** :-(بْ+ رَ+ غَ+ وَ+ لْ) [مص مت] و ـــ برغدول.

**برغولـــے** :-(بَ+ رْ+ غـــو+ لَـــے) [پ ،اس ، مـــذ ، وا ، ج : برغـــولي] (۱) برغبلاے ، سرپوش، د دېګچې یا کټوۍ سر (۲) د تیر او ستنې په مېنځ کښې آوار لرګے ، کوتره.

**په خولۀ برغولے کېښېښودل** :-(مح) پټه خولۀ پاتې کېدل ، د خبرې ځواب نۀ کول، خاموشي اختیارول.

**دخولې برغولے نۀ لرل** :- مح.(۱) ډېر بېباکه ږغېدل ، هر ځاے هره خبره کول، بې واکه خولۀ لرل (۲) هغه څوک چې د خبرې اتبار جوګه نۀ وي.

**برغونـډے** :-(بَ+ رْ+ غُـو+ نْ+ ډَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا] د انغرې یا نغرې په مېنځ کښې د اور دپاره جوړ کړے غار یا کُوتې.

**برغونکے** :-(بَ+ رْ+ غُـوْ+ نْ+ کَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا] خاورین چیلم.

**برغونه** :-(بْ+ رَ+ غَ+ وَ+ نه) و ـــ برغدونه.

**برغونے**:-(بْ+ رَ+ غُوْ+ نَے) [پ ،اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : برغـوني] غبرګـونے، جوړه ، برغ پېدا شوے.هغه ماشوم چې د بل سره جوړه پېدا وي.

**برغوونکے** :-(بْ+ رَ+ غَ+ وُوْ+ نْ+ کَے) [پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج: برغوونکي] (۱) برغه وُونکے ، غبرګوُونکے (۲) تکرار کوُونکے ،خبره اړوُونکے.

**برغه** :-(بَ+ رْ+ غَه) [اف : پ (قاموس) ق ، اس ، مؤ] ګټه ، فائده ، نفع.

**برغې** :-(بَ + رْ+ غَـې) [اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ] بغره ، بغرۍ لنګرۍ ، بټیل

**برغېدل** :-(بْ+ رَ+ غې+ دَ+ لْ) [پ ، مص لا] و ـــ برغدېدل.

**برغېدنه** :-(بْ+ رَ+ غې+ دْ+ نَه) [پ ، حمص] و ـــ برغدېدنه.

**برغېدُونکے** :-(بْ+ رَ+ غې+ دُوْ+ نْ+ کَے) [پ، اس مف،مذ، وا، ج : برغېدُونکي] و ـــ برغدېدُونکے.

**برغېدۀ** :-(بْ+ رْ+ غې+ دۀ) [پ ، حمص] و ـــ برغدېدنه.

**برغبلائے** :-(بَ+ رْ+ غې+ لائے) [پ (بنو) اس ، مذ ، وا ، ج: برغبلي] و ـــ برغولے.

**برف** :-(بَ+ رَ+ فْ) [فا ، اس ، مذ] واوره.

**بـرف بـاري** :-(بَـرف+ بـا+ رِيْ) [فـا ، اس ، ص ، مـؤ] واوره ورېـدل ، واوره اچېدل.

**برق** :-(بَ+ رْ+ قْ) [ع ، اس ، مذ] بجلي ، تندر.

**برقي قوت** :-(بَ+ رْ+ قيْ+ قُ+ وَ+ تْ) [اص] د بجلۍ طاقت.

**برقرار** :-(بَ + رْ+ ق+ را+ رْ+ فا ، ص ، مذ] په خپـل ځاے ولاړ، قـايم موجود ، باقي ، نۀ خوځېدونکے.

**برقـه** :-(بُ+ رْ+ قَـه) [پ (عـا) ع : برقعـه ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بُرقـې] بورقه، نقاب ، پرده.

**برکت** :-(بَ+ رَ+ کَ+ تْ) [ع ، ص ، مـذ ، وا ، ج : برکتونـه] (۱) زیـاتوالے ، ډېر والے (۲) نېک بختي ، رحمت

چې هر حرف ئې د نافې په څېر خوشبو دے
برکـــت مـــې په جزدان په قلم دان کړې (رحمان)

(۳) وجه ، سبب

ماد دۀ هر غم وهلے دے په لته
د پیالۍ د صراحۍ له دبرکته (رحمان)

(۴) بنیا ګان د تول په وخت د یو په ځاے برکت ټکے استعمالوي.

ــــ **تلل** :- اص ، نېک بختي لرې کېدل ، بدبختـه کېدل ، کمے راتلل ، سختي کېدل.

ــــ **ټولېدل** :- اص ، د بېخوندۍ ورځې راتلل ، بدې ورځې پېښېدل ، بې برکتي راتلل

**برکت بوټے** :-(بَ+رَ+کَ+تْ+بُوْ+ټے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : برکت بوټي] یو قسم بُوټے ـ چې د انګورو په شان مېوه لري ، عنب الثعلب.

**په خولهٔ دې برکت شه** :- اص ـ د چا نه د نېې وینا په اورېدو د دُعا په ډول وئیلے کېږي.

**برکتي** :-(بَ+رَ+کَ+تيْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ] نېک بخت، خوش قسمتَ ، د برکت خاوند ، عزتمن ، سباد ، خوشحاله.

ــــ **خولهٔ** :- اص.هغه څوک چې په وېناکښې ئې برکت وي.

**برکښ** :-(بَ +رْ+کَ+شْ یا کَ+خْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : برکښان] د لیندۍ ژۍ.

**برکښه** :-(بَر+کَ+شه یا کَ+خه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : برکښې] ویستلے ، کښلے ، بهر کړے ، د نیام نه بهر.

**برکند** :-(بَ +رْ+کَ+نْ+دْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] سرکند ، مثل.

**برکول** :-(ب+رْ+کَ+و+لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] ځناور ځنډل.

**برکولے** :-(بْ+رْ+کَ+ولے) [اف : پ (قاموس) اس ، صف ، مذ ، وا ، ج : برکولي] ځنډلے شوے ځناور.

**برکوونکے** :-(ب+رْ+کَ+وُوْ+نْ+کَے) اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : برکوُونکي] ځناور ځنډوُنکے.

**برکه** :-(بَ +رَ+که) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : برکې] د ورۍ ټوکے.

**برکۍ** :-(ب+ر+کۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] لویه ترنګڼ چې بوس ، پروره یا پُوړ په کښې وړلے شي.

**برکي** :-(بَ +رْ+کيْ) [پ ، اس ، مذ ،وا ، ج : برکیان] د پښتنو اُرمړ قبیلې یو نوم برکي هم دے.

**برکې**:-(بُ+رْ+کې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د اور دلمبې اواز.

**برګ** :-(بَ +رْ+ګ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : برګونه] (۱) وسله ـ متل :- "څوک ئې په کلي کښې نهٔ پرېږدي ـ دے وائي برګ مې ملک کره کېږدئ" (۲) پاڼه

ځهٔ عجب که فتنه پرېږدي
لـکه تــــراوســه ربږدي (کاظم خان)

(۳) (اف) ګردنۍ ، کمربند ، غاړه کۍ.

**په برګ کوټې وهل** :-(اص) په وسله لاس وهل ، جنګ ته ځان تیارول.

**برګ** :-(بْ+رَ+ګْ) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : برګان ، برګي ، برګون، (مؤ ،وا : برګه ، ج : برګې)] (۱) دوه رنګي ، تور سپین یا سُور سپین (۲) برصي ، د برص په بیمارۍ اخته (۳) ټګ ، منافق ، دوکه باز ، چلولي ، بې اتباره.

د اوسنے زمــــانې یـــار ګــنمه ټګ وخېژي
سپین مسلمان راته ښکارېږي ناګاه برګ وخېژي (حافظ الپوري)

**برګ برګ کتل** :- مح.په غصه کښې کتل.په قهر کتل.

برګ برګ ورته ګورم نه راځې د برګې چل (چاربېته) (سېد مهربان)

**برګ برګ کېدل** :-(مح) غصه غصه کېدل، قهرېدل ، د غصې نه ډَډ ډَډ کېدل.

**برګ ترګ** :-(بَرګ+تْ+رَ+ګ) [پ (ب ، خ) اس ، ص مذ] (۱) بېخي برګ ، دوه رنګیځ (۲) ټګ ، چل ولي ، بې اتباره.

**برګ سترګے** :-(برګ+سْ+تَ+رْ+ګے) [پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: برګ سترګي] (۱) چغر (۲) بې حیا ، بې شرم ، سپین سترګے.

**برګ شېطان** :-(برګ+شې+طا+نْ) [پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: برګ شېطانان ، (مؤ ، وا: برګه شېطانه ج : برګې شېطانې)] ډېر وران او فسادي ، لوے شېطان.

**برګتوب** :-(بْ+رَ+ګْ+تـو+بْ) [پ ، اس ، مـذ] برګتیـا ، برګتـوبي ، برګوالے ، ټګي ، دوه رنګي ، دوکه بازي ، چل ول.

**برګتوبي** :-(بْ+رَ+ګْ+تو+بيْ) [پ ، اس ، مؤ] و ــ برګتوب.

**برګتیا** :-(بَ+رْ+ګَ+تْ+یا) [پ ، اس ،مؤ] و ــ برګتوب.

**برګټے** :-(بَ+رْ+ګَ+ټَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: برګټي ، برګټیان (مؤ ، وا: برګټې ، ج : برګټیانې)] (۱) پرکټے پرکټائي ، ناسکه زوے (۲) د یو مارغه نامه.

**برګړندے** :-(بَ+رْ+ګَ+ړَ+نْ+دَے) [پ، اس ، مذ ، وا ، ج : برګړندي] برګندي ، بره ګړه ، روغ بړ ، روغ جوړ ، سترې مشې، لاس ورکونه ، مصافحه ، جوړ تازه.

لاپردې راسره برګړندے وکا
زهٔ د خــپلو په سلام په چریم (خوشحال)

**برګړندي کول** :-(اص) جوړ تازه کول ، روغ بړ کول ، لاس ملاوول ، سترې مشې کول.

**برګک** :-(بَ +رْ+ګ+کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو غرئیز بوټے چې د تماکو په شان پاڼې لري.

**برګندے** :-(بَ+رْ+ګَ+نْ+دَے) [اف : پ (قـاموس) اس ،مـذ ، وا ، ج : برګندي] و ــ برګړندے.

**برګوالے** :-(بْ+رَ+ګْ+وا+لَے) [پ ، اس ، مذ] و ــ برګتوب

**برګول** :-(بْ+رَ+ګَ+ولْ) [پ ، مص مت] (۱) دوه رنګه ورکول ، ابلـــق کول (۲) غصه کول ، قهرول.

**سترګې برګول** :-(اص) غصه کېدل ، قهرېدل ، د غصې نه په چا سترګې را ایستل.

**برګونه** :-(بْ+رَ+ګَ+وَ+نه) [پ ، حمص] (۱) دوه رنګونه ورکونه ، ابلق کونه (۲) غصه کونه.

**برګوونکے** :-(بْ+رَ+ګَ+وُوْ+نْ+کَے) [پ ، اس فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : برګوُونکي] (۱) دوه رنګه ورکوُونکے ، ابلق کوُونکے ، (۲) قهروُونکے ، غصه کوُونکے.

**برګه** :-(بَ+رْ+ګه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : برګې] لاړې ، ارکې ، هغه لرګے چې تیر یا شهتیر دپاسه د کوټې په چت اچولے شي.

**برګه زمانه** :-(بْ+رَ+ګه+ز+ما+نَه) [پ ، اس ، ص ، مؤ ، وا] ټګه زمانه ، بده زمانه ، خراب وخت ، بې اتباره ورځې.

**بې برګه** :-(بې+بَ+رْ+ګه) [پ ، اس ص ، مذ ، مؤ] بې وسلې، خالي لاس ، تش لاس.

**برګے** :-(بْ+رَ+ګَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : برګي] (۱) د برص په مرض بیمار (۲) بې غېرته ، بې کاره ، دَیُوس ، بې شرمه ، بې حیا ، ټیټ سترګے.

**برګې سترګې** :-(بْ+رَ+ګې+سْ+تَ+رْ+ګې) [پ ، اس ، مر ، مؤ ، ج] لُغ : غصه ناکې سترګې ، د غصې نه ډکې سترګې ، اص : ښکلې سترګې.

**برګې یارانې** :-(بْ+رْ+ګې+یا+را+نې) [پ ، اس ، ص ، مؤ ، ج] ټګې

يارانې ، د چل ول دوستي ، بې اتباره او بې خونده ملګرتيا.

برګې يارانې دي ګوره پرګ ئې تحمتونه دي (چاربېته)(سېد مهربان)

**برګېدل** :-(بَ + رْ + ګې + دَ + لْ ) [ پ (ع) انګ : بريګېډ ، اس ، مذ ، وا ، ج: برګېډونه يا برګېډه ] د فوځ د دريو پلټنو نه يو برګېډ جوړيږي.

**برګېډير** :-(بَ + رْ + ګې + ډي + يَرْ ) [ پ (عا) انګ : بريګېډير ، اس ، مذ ، وا ، ج : برګېډيران ، برګېډيرون ] د بريګېډ لوړے افسر ، ددۀ په اوږو يو يو سپوږمۍ ستورے او دري دري ستارونه وي. په ټوپۍ او کالرو ئې سري فيتې لګېدلې وي.

**برګېډيري** :-(بَ + رْ + ګې + ډي + يَ + رِيْ ) [ پ (عا) اس ، مؤ ] د برګېډير عهده يا منصب.

**برګير** :-(بَ + رْ + ګي + رْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] د څناورو يو مرض ، د څاروۀ زکام.

**برګير کېدل** :-(اف) اص.د څاروي د زُکام په مرض بيماريدل.

**برګېدل** :-(بَ + رْ + ګې + دَ + لْ ) [ پ مص لا ] (۱) په دوه رنګه رنګېدل (۲) غصه کېدل ، قهرېدل ، (۳) د برص په مرض اخته کېدل.

**برګېدنګ** :-(بْ + رَ + ګې + دَ + نْ + ګْ ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ــــ برګېدنه.

**برګېدنه** :-(بْ + رَ + ګې + دْ + نَه ) [ پ ، حمص ] (۱) په دوه رنګه رنګيلا (۲) غصه کېدنه ، قهرېدنه (۳) د برص په مرض اخته کېدنه ، برګېدۀ.

**برګېدونکے** :-(بْ + رَ + ګې + دُوْ + نْ + کے ) [ پ ، اس ، صف ، مذ ،وا ، ج : برګېدونکي ] (۱) دوه رنګيځ کېدونکے ، (۲) غصه کېدونکے ، قهرېدونکے.

**برګېدۀ** :-(بْ + رَ + ګي + دَۀ ) [ پ ، حمص ] و ــــ برګېدنه.

**برل** :-(ب + رَ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] ګټه کول ، فتح مونډل ، بريالے کېدل ، برے مونډل، (دا ټکے اوس نۀ استعمالېږي).

**برلاسے** :-(بَ + رْ + لا + سَے ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : برلاسي ] زورور ، غالب ، طاقتور ، بريالے.

**برلنځه** :-(بَ + رْ + لَ + نْ + دْزَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: برلنځې ] بلنځه ، يو قسم ؤنه چې لرګے ئې سُور وي.

**برلوکے** :-(بَ + رْ + لُو + کے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: برلُوکي ] (۱) داسې سبزي چې د ګاځرو ، مُولو او شلغمو په شان پاڼې لري.(۲) د فصل هغه حصه چې د ريبلو نه پس په پټي کښې پاتې شي.

**ــــ اخستل** :- اف) اص.د سبزۍ پاڼې ريبل.

**ــــ پاته کېدل** :- اف ، اص.د غنمو په شان فصل د ريبلو نه پس په پټي کښې درُوزې پاته کېدل.

**برله** :-(بْ + رْ + له) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : برلې ] هغه اسپه چې په بدن ئې تور داغُونه وي.

**برلے** :-(بْ + رْ + لے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : برلي ] د ريبلي شوي واښۀ څُوکه.

**برم** :-(بَ + رَ + مْ ) [ پ ، ه : بهرم ، اس ، مذ ] طاقت ، زور ، وس.

که هندو که مسلمان د پت په کار کښې

چې مې ولـــيدل د هيـــچا نشته برم (خوشحال)

**په برم کښې کېدل** :- مح.زور مونډل ، طاقت حاصلول ، وسيز کېدل درجه مونډل ، په برم کښېوتل.

**په برم کښېوتل** :- مح.و ــــ په برم کښې کېدل.

**دبرمَ پرېوتل**:- مح.بې طاقته کېدل ، کمزورے کېدل ، بې وسه کېدل.

**دبرمَ پرېږي ايستل** :- مح.بې طاقته کول ، د لاډو بادو ويستل ، کمزورے کول ، بې وسه کول.

ډېرو اوښيو مې صورت له برمه پرې وست

زر بــــه پرېوځي دا ډېـوال لـه دغه زيـمه (حميد)

**د برمَ ختل** :-اص.د وېښ نه ختل ، بېخې نړېدل.

**دبرمَ غورزَول** :- مح.و ــــ د برمَ پرې ايستل.

**دبرمَ غورزېدل** :- مح. و ــــ د برمَ پرېوتل.

**دبرمَ وتل** :-(اص) بې وسه کېدل ، بې طاقته کېدل ، د لاډو بادو وتل.

**برمانته** :-(بَ + رْ + ما + نْ + تَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] وحشي توب ، وحشت ، ظلم زياتي.

**برمانو** :-(بَ + رْ + ما + نُو) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : برمانوګان] (۱) بن مانو ، يو قسم ځنګلي ځناور ، هغه بيزوګے يا شادوګے چې د بنيادم په شکل وي.(۲) شهوتي.

**برمته** :-(بْ + رَ + مْ + تَه ) [ اف : پـه (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : برمتې] يرغمال ، د چا سړي يا ښځې په څۀ بدل کښې په زور ايسارول.

**برمحل** :-(بَ + رَ + مَ + حَ + لْ ) [ فا ، اس ، ص ، مذ] په ځاے ، په موقعه ، په مناسب وخت.

**برمد خېل** :-(بَ + رْ + مَ + دْ + خې + لْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : (مؤ وا: برمدخېله ، ج : برمدخېلې)] (۱) د پښتنو يوه قبيله (۲) د برمد خېل قبيلې نارينه.

**برمک** :-(بَ + رْ + مَ + کْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ايکونه ، کُولے ، د خاورو نه جوړ کندو چې غله پکښې کښېښولے شي.

**برمک** :-(بَ + رْ + مَ + کْ ) [ ع ، اس ، مذ ، وا] برامکه ، د بنو عباس د وزيرانو خاندان وو چې زور ئې حاصل کړے وو.شجره ئې داسې ده. خالد بن برمک ، بيا د هغۀ زوے يحيٰى او بيا جعفر بن يحيٰى.

**برمکي** :-(بَ + رْ + مَ + کِيْ ) [ ع ، اس ، ص ، مذ ، ج] د برمک خاندان سره تعلق لرونکے ، د برمک د کالۀ.

**برمل** :-(بَ + رْ + مَ + لْ ) [ پ ، اس ، مذ ،وا ] د ماسپښين وخت

که بريځر وي که غرمه وي که برمل وي

کــه لرمـل وي کـه لـمريـدۀ تـرملـونه (ښکارندوئ)

**برلمبه**:-(ب + رْ + لَ + مْ + بَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا] د اور لوبه يا زياته لمبه ، بُرلمبه.

**بُرلمبه** :-(بُ + رْ + لَ + مْ + بَه) [ پ (صوابي) اس ، مؤ ، وا] و ــ برلمبه

**برما** :-(بَ + رْ + ما ) [ ه ، اس ، معر ، مؤ] د ايشاء په براعظم کښې د نمر ختيځ پاکستان نه نمرخاتۀ ته پروت يو ملک.

**برملا** :-(بَ + رْ + مَ + لاَ ) [ فا ، ص ، مذ ، مؤ] په ډاګه ، په جوته ، په ښکاره ، څرګنده ، په ډانګ پيلي ، د ټولو په وړاندې.

**ــــ ويل** :- په جهر ويل ، په جوته ويل ، په ډاګه ويل ، په ښکاره ويل ، څرګند ويل ، د ټولو په وړاندې ويل.

**برملا توب** :-(بَ + رْ + مَ + لا + تو + بْ ) [ پ ، ص ، مذ] څرګندتيا ، ښکاره والے

**برمنډ** :-(بَ + رْ + مَ + نْ + ډْ ) [ پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج (مؤ ، وا: برمنډه ، ج: برمنډې ) ] و ــــ بربنډ

هېڅ له شرمه راته مه وايه ناصحه

د بر منډ له اوبو څۀ ادېش وباک (حميد)

**برمنه**:-(بَ + رْ + مَ + نَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : برمنې] و ــــ برمه.

**برمول**:-(بَ + رْ + مو + لْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا] په پښتونخوا کښې د يو ځاے نوم.

**برمه** :-(بَ + رْ + مَه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : برمې] برمنه ، د سُوري کولو اله.

**ــــ کول**:- اص ، سورے کول ، په څۀ څيز کښې په برمه سُورے کول.

**ــــ کېدل**:- اص.سُورے کېدل ، په څۀ څيز کښې په برمه سُورے کېدل.

**برمي**:-(بَ + رْ + مِيْ ) [ پ ، ص ، مذ ، مؤ] د وس خاوند ، طاقتور د درجې مالک.

**برمۍ**:-(بَ + رْ + مَ + ئِی ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د کوهي پائدان ، يا کوپه.

**برمیـالے** :-(بْ+رَ+مْ+یـا+لَـے) [اف: پ (قـاموس) اس ص، مـذ، وا، ج: برمیالي، (مؤ، وا: برمیالۍ، ج: برمیالانې)] د طاقت ثبنـــتن، د درجې او د جلال خاوند۔

**برمینه** :-(ب+رْ+مِيْ+نه) [اف: پ (قاموس) اس] یو مشهور ګُل چې قسم قسم رنګونه لري۔

**برنا** :-(بَ+رْ+نا) [فا، اس، ص، مذ] ځوان، زلمی، ژنی، زنکے

چې مې غوږ په نارو نۀ باسي حېران یم
پـروا نـۀ لـري وارۀ دي کـــه بـرنـا (رحمان)

**برناحق** :-(بَ+رْ+نا+حَ+قْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: (مؤ، وا: برناحقه، ج: برناحقې)] اوچ په اوچه، بې وجهې، خامخا، بغېر د څۀ سببه۔

**برنج** :-(بْ+رَ+نْ+جْ) [فا، اس، مذ] وریژې، چاول

**برند** :-(بْ+رْ+نْ+دْ) [پ، اس ص، مذ (مؤ، وا: برنده، ج: برندې)] بې حیا، بې شرم، سپین سترګے

**ـــــ برند کتل** :- اص، په غُصه کتل، په غُصه کښې نېغ نېغ کتل، په را ایستلو سترګو کتل، په یو مخه کتل۔

**ـــــ پرېوتل** :- اص، ویړ پرېوتـل، ویړې تنۍ څملاستل، سست پست پرېوتل۔

**ـــــ کتل** :- اص، بد کتل، په قهر کتل، کښېناستل، د بې حیایۍ په ډول کښېناستل۔

**سترګې برندې را ایستل** :- مح۔د غصې نه سترګې ویتې راویستل، په غُصه کښې نېغ نېغ کتل۔

**برنـد سـترګے** :-(بْ+ر+نْ+دْ+سْ+ت+رْ+ګَے) [پ، اس ص، مـذ، وا، ج: برند سترګې] بې شرم، بې حیا، نېغ سترګے، د شرم لوښے، نۀ شرمېدونکے۔

**برنـدو** :-(بْ+رَ+نْ+دُوْ) [پ، اس، مـذ] (۱) خـوږ غرئیـزه نالـه، الګـړه، (۲) د بُونېر په علاقه د یو خوړ نامه۔

**برنـدول** :-(بْ+ر+نْ+دَ+وَلْ) [، مـص مـت] غُصـه کـول، قهـرول، سوخته ول، ببرول۔

**برندونه** :-(بْ+ر+نْ+دَ+و+نه) [پ، حمص] غُصه کونـه، قهرونـه، سُوخته ونه، ببرونه۔

**برنـــدوُونکے** :-(بْ+ر+نْ+دَ+وُوْ+نْ+کَـے) [اس، فـا ع، مــذ، وا، ج: برندوونکي] غُصه کوونکے، قهروونکے، ببروونکے، سوخته وونکے۔

**برنـده** :-(بْ+رَ+نْ+دَه) [پ ص] نوې ځواني، شونډه شنه کېدل، دا ټکے صرف د ځوانۍ د صفت په دود راځي۔لکه: "برنده ځواني"

**په برنده ځوانۍ مړ کېدل** :-مح۔په ښې ځوانۍ کښې مړ کېدل، ځواني مرګ کېدل

**ـــــ کښېناستل** :- اص۔په خوشحالۍ، فخر، ناز او ارام کښې کښېناستل

چې سترګې په رنجو کړ برنۀه کښېنې خورې زلفې
چې غـټ غـټ به درتـه ګوري یو یو مرد بولـه بللے (خوشحال)

**برنـده** :-(بَ+ر+نْ+ده) [اف: پ (قـاموس) اس ص، مـؤ] تېـز، چـالاک، چابک، سرکنده۔

**برنـدے** :-(بْ+رَ+نْ+دَے) [اف: پ (قـاموس) اس، مـذ، وا، ج: برنـدي] څرخه، هغه اله چې جولاګان تارُونه پرې څرخوي۔

**برندېدل** :-(بْ+رَ+نْ+دې+دَ، لْ) [پ، مص لا] غُصه کېدل، قهـرجن کېدل

**برندېدنه** :-(بْ+رَ+نْ+دې+د+نَه) [پ، حمص] قهرېدنه، غصه کېدنه۔

**برندېدُونکے** :-(بْ+رَ+نْ+دې+دُوْ+نْ+کَے) [پ، اس، فـاع، مـذ، وا، ج: برندېدُونکي] قهرېدونکے، غصه کېدونکے۔

**برندې سترګې** :-(بْ+رَ+نْ+دې+سْ+تَ+رْ+ګې) [پ، اس مر، مؤ، ج] (۱) د غصې نه ډکې سترګې، د قهر نه راویستلې سترګې

ودې خپلو برندو سترګو ته دې وایه
چـې دا وژنـې مـې قلـم قلـم په څۀ (رحمان)

(۲) ملالې سترګې، اثري سترګې۔

بـرندې سـترګې چـې راپـورته په مـستۍ کړې
ما که مست،روزګار که مست ،درودیوار مست (صدیق)

**برنـډه** :-(بَ+رَ+نْ+ډَه) [پ، فـا: برامـده، اس، مـؤ، وا، ج: برنـډې] دالان، برانډه۔

**بـرنځ** :-(بْ+رَ+نْ+دْز) [پ، (ب، خ) اس، مـذ، وا، ج: برنځـون] د مانـده غوښې د څرمنې په شان حصه۔

**برنډۍ** :-(بَ+رَ+نْ+ډَۍ) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] د لنډو لستوڼو جېکټ۔

**بُرنـړۀ** :-(بُ+رْ+نْ+ړَۀ) [پ، (ب، خ) اس، مـذ] (۱) و ـــ بانـۀ (۲) بونـۀ، خُشکه، هغه اوچ اوړۀ یا دُوړه چې پېړې په کښې جوړوي۔

**برنئـے** :-(بَ+رَ+نـئـے) [پ، ص، مـذ، وا، ج: برنـي (مؤ، وا، ج: برنـۍ)] (۱) پورتنے، پاسنے (۲) بېګانے، د بېګا شپې۔

**برنۍ** :-(بَ+رَ+نۍ) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] د ګنډون یا ګنډانـۀ یـو قسم۔

**برو** :-(بَ+رُوْ) [افي: پ (قاموس) اس، مذ] (۱) د پاس طرف نه باد، پاسنے باد (۲) د ماخۍ په شان یو بوټے۔

**برو‌پیـا** :-(بَ+رُو+پْ+یـا) [پ، (عـا) بهروپیـا، اس، مـذ] (۱) نقلـي، ټوقمار (۲) ټګ مکار، چل ولي، فرېبي، دوکه باز۔

**بروځه** :-(ب+رْ+و+دْزَه) [پ، اس، مؤ، ا، ج: بروځې] (۱) بروېځـه، یو قسم وابښۀ (۲) یو قسم بوټے چې د جامو وینځلو دپاره د صابون پـه ډول استعمالېږي۔

**بروټـے** :-(بَ+رْ+و+ټَـے) [اف: پ (قـاموس) اس، مـذ، وا، ج: بروټـي] دسترخوان، څپُوڼے۔

**بروټے** :-(بْ+رو+ټے) [اف: پ (قـاموس) اس، مـذ، وا، ج: بروټې] د غنمـو یا اوربشو یو مُوټے یا کوده۔

**بروټیـي** :-(بْ+رو+ټـي) [اف: پ (قـاموس) اس، مـؤ] د لرګـو ګېـډے چـې زنانه ئې د سر دپاسه وړي۔

**بـروډ** :-(بْ+رو+ډْ) [اف: پ (قـاموس) اس، ص، مـذ (مـؤ، وا: بـروډه، ج: بروډې)] لافې شافې ویونکے، لاف زن، د ځان نه اوچتې غروُونکے۔

**بروړ**:-(بِ+رو+ړْ) [اف: پ (قـاموس) اس، مـذ] د بلـور نـه مفغـن شـوې شیشه۔

**بروړه**:-(ب+رو+ړه) [اف: پ (قاموس) اس، مـؤ، وا، ج: بـروړې] وېنـۀ، اینۀ، اُونې۔

خو چې اومې ننبت نظر په حال د ترکو
لاهـغه مـې پـه زړۀ ننبـتے بروړه ده (علیخان)

او

نابود بوالق دي که بروړې دي
راغـلـے مـــه تـــر برموله (خوشحال)

**بروړه** :-(ب+رو+ړَه) [اف: پ (قـاموس) اس، مـؤ، وا، ج: بـروړې] ګډولـه، ګـډلې، د ګـډو د ډوغلـو د اُوړو نـه تیـاره کـړې شـوې ډوډۍ، ګـډ ګـډیره ډوډۍ

**بروز** :-(بَ+رْ+وَ+زْ) [اف: پ (قاموس) اس، مـذ، وا، ج: بروزونـه] پروېـزې، غلبېل، چنوُنے۔

**بروزولــه** :-(بَ+رْ+وَ+زْ+وَ+لَــه) [اف: پ (قـاموس) اس ص، مــذ، وا]

غلبېل ، پروېزې يا چڼونې ځرڅوُونکې.

**بروزه** :-(بَ+رْ+وَ+زَه) [پ ، اس ، مؤ ، ج] يو قسم وابښهٔ چې مال ئې نهٔ خوري د غرونو خلق ئې د فرش په ډول په خپلو کوټو کښې اچوي.

**بروسه** :-(بَ+رو+سَه) [پ ، ه : بهروسا يا بهروسه ، اس ، مؤ ، وا ، ج: بروسې] ډاډ ، حيله ، مرسته.

**برول** :-(بُ+ر+و+ل) [اف : پ (قاموس) مص مت] څهٔ څيز په زور دلاسه راغورزول يا ارتاوول.

**برولے** :-(بْ+ر+و+لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مف ، مذ ، وا ، ج: بُرولي] څهٔ څيز په زور راغورزولے شوے ، ارتاؤ کړے شوے.

**بروڼه** :-(ب+رو+نْ+ړه) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] سپېروشے بوټه ، بُرېڼهٔ ، خُشکه ، هغه اوچ اُوړهٔ چې پېړې پکښې جوړوي.

**بروڼے** :-(بَ+رْ+وُ+نْ+ړے) [اف : پ(قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بروڼي] (۱) هغه خانه چې د ګاډي د پايې دُهره په کښې ګرحي (۲) اُوربے.

**برونګ** :-(بُ+ر+و+نْ+ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ــ برونه .

**برونه** :-(بُ+رْ+و+نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] څهٔ څيز په زور دلاسه غورزونه يا ارتاؤ کونه.

**برووُنکے** :-(بُ+رْ+وُوْ+نْ+کَے) [اف : پ (قاموس) اس فاع ، مذ وا ، ج : برووُنکي] څهٔ څيز دلاسه په زور سره غورزووُنکے يا ارتاؤ کووُنکے.

**بروه** :-(بَ+رْ+وَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بروې] فرياد ، چغه ، کريکه.

**بروه** :-(بَ+رْ+وه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بروې] کبل ، بېروه ، يو قسم وابښهٔ.

**بروې وهل** :-(اف) اص.- په زوره زوره چغې ايستل ، بروې وکښل ،

لاپه غټ سترګو روند نهٔ ؤم نو څهٔ ؤم
چـې سنبل مې ګڼل تربے د بروې (عليخان)

**بروې وکښل** :-(اص) و ـــ بروې وهل.

**بروې** :-(بَ+رْ+وې) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ] سرېښناک لېسدار ، نښلېدونکے.

**بروېزه** :-(بَ+رْ+وې+زَه) [پ (ب ، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : بروېزې] و ـــ بروزه.

**بـره** :-(ب+رَه) [پ ، اس ، مـؤ] (۱) پـاس ، پورتـه ، اوچـت (۲) دا ټکے د مياشتې يا کال د شروع کېدو دپاره وئيلے شي .لکه : "مياشت رابره شوه يا نوے کال د بره شو".

ـــ **تلل** :- اص.-(۱) پورته تلل ، پاس ختل (۲) ترقي کول ، عزت زياتېدل

ـــ **ختل** :- اص.- و ـــ بره تلل.

ـــ **کېدل** :- اص ، راختل ، راڅرګندېدل ، راښکاره کېدل.- جوتېدل.

**شپه رابره کېدل** :-(اص) شپه کېدل ، د شپې نخښې راڅرګندېدل.

**بره** :-(بَ+رْ+رَه) [فا ، اس ، مؤ] (۱) د ګډې يا بزې ورکوټے بچے ورے ، ورغومے ، (۲) ص.- د ورغوړې تنکۍ کچه غوښه.

**بره پارتي** :-(بَره+پا+رْ+تِيْ) [پ تر ، بره : فارسي ، پارتي ، انګرېزي) اس ص ، مؤ] هغه ډوډۍ چې د ورغومي تنکۍ غوښه پکښې مېلمنو ته ورکولے شي.

**بُرهار** :-(بُ+رْ+ها+ر) [اف : پ (قاموس) اس صو ، مذ] د اور د شغلې يا داسې بل څيز اواز ، برهار.

**برهار** :-(بَ+رْ+ها+رْ) [پ (ګن) اس ، صو ، مذ] و ـــ بُرهار.

**برهان** :-(بُ+رْ+ها+نْ) [ع ، اس ، مذ ، وا] دليل ، ښکاره ثبوت.

کېفيت ئې موندے نهٔ شي
پـه دليـل او پـه بـرهان (رحمان)

**برهان قاطع** :-(بُرهان+قا+ط+عْ) [ع ، اس ، مذ] لُغ : قطعي دليل ، پوخ ثبوت ، اص : د فارسي ژبې يو مشهور لُغت.

**برهانـه** :-(بُ+رْ+ها+نـه) [اف : پ (قاموس) اس مـؤ ، وا ، ج : بُرهـانې] د شګو د ډېريو سلسله .

**بره خانخېل** :-(بره+خا+نْ+خې+لْ) [پ ، اس ، معر] پـه مـردان کښـې د خانخېلو يوه ټپه.

**بره خېل** :-(بره+خې+لْ) [پ ، اس ، معر] د ګنډه پور يو خېل.

**بره ګوه** :-(بَ+رَه+ګَ+ړه) [پ ، اس ، مؤ] و ـــ برګرېندې .

**بـرهم** :-(بَ+رْ+هَ+مـغ) [فـا ، اس ، مـذ (مـؤ ، وا : برهمـه)] (۱) پـه غُصـه کښې ، قهرېدلے ، ناراض ، خفه

چـې بـرهم کا عاشقي د کا مزاج
حکيمان ئې درمانده شي په علاج (رحمان)

(۲) پرېشان ، خور وور ، بې ترتيبه

چې مال ئې د دې بزم برهم وليد
صـراحي په وينـو وژل ساغر هم (کاظم خان)

(۳) ضائع.

د هر چاسره چې کړې هغه په مومې
د هـېڅ تـخم مېوه نهٔ درومي برهم (رحمان)

**برهم چاري** :-(برهم+چا+رِيْ) [ه ، اس ، ص ، مذ] هغه هندو چې د ويد د تعليم حاصلولو دپاره ئې د دنيا کا روبار پرېښے وي.- تارک الدنيا .

**برهمن** :-(بُ+رْ+هْ+مَ+نْ) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : برهمنان (مؤ ، وا : برهمنه ، ج : برهمنې)] بانبړ ، پنډت ، هندو مذهب په څلورو فرقو يعني برهمن ، ويش ، کشتري او شُودر کښې تقسيم دے.- برهمن د ټولو نه غوره ذات ګڼلے شي.

وخپل ځان وته نګران لېل ونهار يې
په مـثال د برهـمن ،صـورت پرسته (کاظم خان)

**برهو** :-(بَ+رْ+هُوْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ګرم باد .

**برهو** :-(بَ+رْ+هو) [اف : پ (قاموس) ص] بې قولـه ، بې ژبې ، بې وعدې ، دوغله.

**نه هواؤ نه برهو کېدل** :-(اف) اص.- د بې وعدې او منـافق سړي پـه بـاره کښې وئيلے شي.

**بـرے** :-(بَ+رَے) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بـري] کاميـابي ، ګټـه ، فـتح ، غلبه.

که د جنګ په کار کښې ؤېر دي حکمتونه
چې د سـر صـرفه اونهٔ کړې نـور برےدے (خوشحال)

ـــ **کول**:- اص.- برے موندل ، ګټه کول ، غلبه حاصلول ، کاميابېدل ، برے وړل.

ـــ **موندل** :- اص ، و ـــ برے کول.

عاشقان په شکست کښې برے بيا موند
دلتـه توان د هغـو رسي چې ناتوان وي (رحمان)

ـــ **وړل** :- اص ، و ـــ برے کول.

ـــ **پيدا کول** :- اف ، اص.- و ـــ برے کول.

**دبري مل** :-(اص) د ګټې ملګرے ، د غالب فريق مل ، د ګټندويه ډلې سره.

**دبري مېدان** :-(اص) د ګټې طرف ، د ګټې مېدان.

راشـه ګـوره نامـردان بـلا وهلي
د بري مېدان پرېږدي لړې ترې زغلي (خوشحال)

**بـرے** :-(ب+رَے) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بـري] سرباري ، پـه يـوه سـودا کښې د څيز په بدل کښې څهٔ څيز او ورسره زياتوب چې د نغدې پـه شکل کښې ورکولے شي.

**بري**:-(بَ+رِيْ) [ع ، اص] آزاد ، خلاص ، بې بنده ، د قېد نه ازاد شوے.

ـــ **کول** :- اص ، د قېد نه خلاصول ، د جېل نه ايستل.

—— **کېدل** :- اص ، د قېد نه خلاصېدل ـ د جېل نه راوتل ـ

**بري** :-( بَ + رِيْ ) [ پ ( دير ) اس ] د اونې بُور ـ

**بري**:-( بَ + رْ + رِيْ ) [ فا ، ص ] (۱) خشکي ، د اوچوبې ، مېداني ، لکه : '' بـري فـوځ '' يـا ''بـري هـوا '' (۲) د بـري امـام پـه ميلـه کښـې د چرسيانو يا د مريدانو اواز ـ

**بريا** :-( بَ + رْ + يَا ) [ اف ، پ ( قاموس ) اس ] (۱) پـه لاس راغلـې څيز ، مونـدلے شـوے ، حاصـل شـوے (۲) ب ، خ ـ د ډېـرې ستومانـۍ لـه کبلـه د پښـو پنډۍ خوږېدل ، او د پلو سختېدل ـ

—— **کول** :- اف ـ اص ـ حاصلول ، موندل ، په لاس راوستل ـ

—— **کول** :- اف ـ اص ـ (۱) په لاس راتلل ، موندلے کېدل ، حاصلېدل (۲) ب ، خ د ډېرې ستومانۍ د کبله د پښو پنډۍ خوږېدل او د پلو سختېدل ـ

**بريـاړه** :-( بَ + رْ + يـا + ړَه ) [ پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بريـاړې ] هغـه غـوا چـې غوبۀ سره نۀ ځري ـ

**بريالـه** :-( بَ + رْ + يـا + لَـه ) [ اف : پ ( قـاموس ) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بريـالې ] دريځۀ ، روشندان ، هغـه بـارۍ چې د هـوا او رڼـا دپـاره پـه مکـان کښـې جوړولے شي ـ

**بريالے** :-( بَ + رْ + يا + لَے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بريالي ( مؤ ، وا ، بريالۍ ) ] (۱) بر شوے ، گټندويه ، هغه څوک چې غالب شوے وي ـ فاتح (۲) غوره ، اوچت ـ

تۀ چې ما منع کوې د يار له دره
کوم يـو در له دره بريالے دے (رحمان

**بريان**:-( ب + رْ + يا + نْ ) [ فا ، اس ، مذ ] وريت شوے ، په اور سوځېدلے ـ

**برياني** :-( بِ + رْ + يا + نِيْ ) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ] يو قسم پلاؤ ـ

**بريانه** :-( بَ + رْ + يا + ي + نه ) [ اف : پ ( قاموس ) حمص ] رسونه ، بريا کونه ، ورکونه ـ

**بريـت** :-( بْ + رِي + تْ ) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بريتونـه ، بريتينـه ، برتـان ] برتان د شونډې دپاسه وېښتۀ ـ

—— **اخستل** :- مح ـ سُنت جوړول ، په نائي يا حجام بريتونه برابرول ـ

—— **اړول** :- مح ـ بريت تاوول ، خان بادر يا باتور شمارل ـ

—— **پاس خېژول** :- اص ـ په څۀ خبره فخر يا وياړ کول ـ

—— **په خولۀ کښې منډل** :- مح ـ غُصـه کېدل ، سوختېدل ، زيات قهرېدل ، بريت چيچل

—— **په خمچه اړول** :- اف ـ مح ـ د بادرۍ او لويـۍ اظهار کول ـ

—— **تـاوول** :- مـح ، بريتـو تـه تـاؤ ورکول ، د بـادرۍ يـا بـاتُورۍ اظهـار کـول ، لوئي او فخر کول ، د څۀ شوې واقعې ځان ته نسبت کول ـ

—— **چيچل** :- مح ، و —— بريت په خولۀ کښې منډل ـ غصه کول ـ

—— **خرئيل** :- مـح (۱) بريت کلول ، بريت پـاکول (۲) بې عزتـه کـول ، شرمنده کل ، په پښتونخوا کښې چې د بريتور سړي بريتونـه اوخرئيلے شي نو دا ډېره لويه بې عزتي شمارلے شي ـ

—— **غوړول** :- مح ـ بريتونه په کُچ ، غـوړو يـا ويزلينـو غـوړول ـ ددې عمـل سره بريتونه زر لوئېږي ـ او په ښۀ شان کُنډه کېږي ـ

—— **کُنډه کول**:- مح ـ بريت ښغول ، بريتو ته تاؤ ورکول ، په فخر يا وياړ شورېدل ـ

—— **کښل** :- مح ، عزت په ځاے کول ، د بادرۍ کار کول ، نېکنامېدل ـ

—— **لويول** :- مح ـ بريت سترول ، لوے لوے بريت پرېښودل ـ

—— **مړاوي کېدل**:- مح ، په څۀ کار کښې پاتې راتلل ، شرمېدل ، شرمنده کېدل ـ

—— **ښغول** :- اص ، و —— بريت کُنډه کول ـ

**بريتونه کښته ځرول** :-( اف ) مح ـ يرېدل ، ډرېدل ، د يرې او ډار مظاهره کول ، بريتونه ښکته غورزول ، ويرې اخستل ـ

**بريتونه کښته غورزول** :-( اص ) و —— بريتونه کښته ځرول ـ

**دبريتـونـه وينـې څڅېـدل** :-( مـح ) (۱) قهرېـدل ، ډېـر زيـات غصـه کېـدل (۲) بهادر يا بـاتور ښکارېدل ، مړنے پـه نظر راتلـل ، توريالے گڼلے کېدل

**بريـت غـوړ** :-( بريـت ، غُ + وَ + ړْ ) [ اف : پ ( قـاموس ) اس ص ، مـذ ] (۱) چـې بريتونه ئې غوړ وي (۲) بډې ( ۲ ) بډې ، رشوت ، حرام مـال ، (۳) د بادشاه او وزير لوبه کښې يو قسم سزا ـ

**بريتو**:-( بْ + رِي + تُوْ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ] (۱) بريتـور ، د لويو بريتونوخاوند (۲) د سپکاوي دپاره هم وئيلے کېږي ـ لکه ''هسې بريتو دے'' ـ

**بريتور** :-( بْ + رِي + تَ + وَرْ ) [ پ اس ، ص ، مذ ] و —— بريتو

**بريځک** :-( ب + رِي + ڈِز + کْ ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مذ ] يو قسم شينکے چې کچه خوړلے کېږي ـ

**بريچ** :-( بْ + رِيْ + چْ ) [ انگ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بريچونه ] د توپې يا د ټوپک هغه لاندينۍ حصه چې گوله يا کارتوس په کښې ورکولے شي ـ

**بريڅر** :-( بَ + رِي + څْـسَ + رْ ) [ پ ( ب ، خ ) اس ، مذ ] ځانښت ، کچه غرمـه ، د کچه غرمې وخت ـ

—— **کول** :- اص ، غوبانۀ او گډبه چې مال د ځرولو نه پس په کچه غرمـه کـور ته راولي نو دې ته مال بريڅر کول وائي ـ او چې خپـل مـال د غرمې د پاره په غرۀ کښې ايساروي نو ورته ''مال کول'' وائي ـ

**بريـد** :-( بْ + رِيْ + دْ ) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بريدونـه ، بريدينـه ] (۱) پُوله ، حد

پوزه سـتا د فتنـه گرو سترگو بريد شوه
گوندې دوې به کور کښې هم کاوۀ پرخاش (عليخان)

(۲) شروع ، ابتداء ، اغاز (۳) حمله ، تاخت ، اپه ـ

—— **ايښودل** :- اص ، حد مقررول ، پُوله ټاکل ، حدبندي کول ، بريد کښېښودل

—— **کول**:- اص (۱) حمله کول ، اپه کول ، تاخت کول (۲) شروع کول ابتداء کول

—— **کوُونکے** :- اس ، فـا ع ، حملـه کـوُونکے ، حملـه اور ، اپـه کـوونکے ، تاخت کوُونکے

—— **کېدل** :- اص ، حمله کېدل ، اپه کېدل ، تاخت کېدل ـ

—— **کښېښودل**:- اص ، و —— بريد ايښودل ـ

—— **ماتول**:- اص ، بريد نړول ، پُوله ورانول ، حد رنگول ، پُوله ماتول ـ

—— **موندل** :- اص ، اص ، د حملې يا تاخت دپاره موقع موندل ـ

—— **نړول** :- اص ـ و —— بريد ماتول ـ

—— **وهل** :- اص ، (۱) د چا د پټې پُوله په ايوې خپلې زمکې تـه رانړول ، (۲) حمله کول ـ

**بريد خور** :-( بريد + خو + رْ ) [ پ ، ( ب ، خ ) اس ص ، مـذ ، وا ، ج : بريد خوارۀ ( مؤ ، وا : بريد خوره ، ج : بريد خورې ) ] پردۍ پُوله خپلې زمکې ته لړه لړه رانړوونکے ، زياتي خور ـ

**بريد په بريد**:- مح ـ پُوله په پُوله ، يو بل سره نژدې ، يو بل سره جُخت ـ

**برېـدل** :-( بَ + رِي + دَ + لْ ) [ پ ، ( ب ، خ ) مـص لاج (۱) ټرېـدل ، د خېتـې بـاد پـه زور پرېښـودل ، (۲) پـه دسـتونو کېـدل (۳) هسـې پُوچـه وېنـا کـول ، خوشې وېنا کول ، بې مطلبه خبرې کول ـ

**برېدل** :-( بُ + رِي + د + لْ ) [ اف ، پ ( قاموس ) مص لا ] (۱) د څۀ څيز اواز چې په زور ارتاؤ کړے شي يا اووېشتلے شي ـ (۲) د خېتې د باد اواز ، (۳) د مرغۍ د الوتو په وخت د وزرو اواز (۴) په تېزۍ او جلتۍ تلل ـ

**بُربدلے** :- (بُ + رې + د + لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مف ، مذ ، وا ، ج : بربدلي (مؤ ، وا : بربدلے)] (۱) څهٔ څيز په زور ارتاؤ کړے شوے يا ويشتلے شوے (۲) د مرغۍ د الوتو په وخت د وزرو اواز (۳) په تېزۍ او جلتۍ تللے۔

**بُربدنګ** :- (بُ + رې + دَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ۔ بربدنه

**بُربدنه** :- (بُ + رې + د + نه) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱) د څهٔ څيز په زور ارتاوېدنه يا غورزولے کېدنه (۲) د مرغۍ الوتنه ، (۳) په تېزۍ يا بيړه تلنه (۴) ناز او ستائينه ، موندنه۔

**بُربدونکے** :- (بُ + رې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس مف ، مذ ، وا ، ج : بربدُونکي] (۱) څهٔ څيز په زور غورزېدونکے يا ارتاوېدونکے (۲) په بيړه او تېزۍ تلوُنکے (۳) ناز او ستاينه کېدونکے (۴) هغه مرغۍ چې د الوتو په وخت ئې د وزرونو اواز اوزي۔

**بربړه** :- (بَ + رې + ړَه) [پ (ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج : بربړې] يو قسم هريړه

**بربـز** :- (بْ + رې + زْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بربزُونه] (۱) يو قسم ازغے ، (۲) کتمل ، کُوټک ، منګڼ۔

**بربـزر** :- (بَ + رې + زَ + رْ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بربزرُونه] (۱) د سترګې ختو او د کچه غرمې په مېنځ کښې وخت (۲) د سحر ناشته ، "يادګيرنه : دا ټکے بربځرهم ليکلے شي"۔

**بربـزن** :- (بَ + رې + زَ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس صو ، مذ] د ګډې ، ورغومي يا بزې اواز يا په يو مخ چغې۔

**ـــــ کول** :- اف۔ د ګډې يا ورغومي اواز ويستل۔

**ـــــ کېدل** :- اف۔ د ګډې يا ورغومي اواز کېدل۔

**بربزنه** :- (ب + رې + ز + نه) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ ، وا ، ج : بربزنې] لوړه ، اوچته ، ستغه۔

**بربـژه** :- (بَ + رې + ژه) [پ ، (ب ، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : بربـژې] نوکـه وره پنجه، په چا طاقت موندل، د چا خلاف تکړه کېدل۔

**بربـژې اچول** :- (ب ، خ) اص ۔ د سپي يا بل غوښې خوړونکي ځناور خپلې رومبۍ پښې په چا اچول۔

**بربـړن** :- (بَ + رې + ژ ، ن يا ګَ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، صو] و ـــ بربزن

**بربړه** :- (ب + رې + ژَ + ه يا ګه) [اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مؤ] د سپي يا د هغهٔ په شان د بل څيز چغې۔

**بربـښ** :- (بْ + رې + شْ + يا خْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بربښونه] (۱) ځلا ، جلا ، ځلق ، چمک ، پړقا (۲) درد ، خوږ ، تکليف۔

د قلا په کنګرو پاس به چې تور بربښ شو
لـه هېبته به د لمر په ملا کښې بربښ شو (مسعود ګل)

**ـــــ ختل** :- اص ، درد کول ، خوږېدل ، زور اخستل۔

**ـــــ را اوچتېدل** :- مح ، درد راولاړېدل ، خوږ شروع کېدل۔

**ـــــ کول** :- مح (۱) ځلا کول ، چڼ کېدل ، ځلقېدل ، چمک کول ، پړقېدل ، (۲) درد کول ، خوږېدل ، زور اخستل۔

**ـــــ کېدل** :- مح ، درد کېدل ، خوږېدل ، زور اخستل۔

**بربښ** :- (بْ + رِيْ + شْ يا خْ) [ف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] (۱) تېزي ، چُستي ، چابکي ، جلتي (۲) پياوړتوب ، تکړه توب۔

**ـــــ پر کول** :- اف : په يو کار کښې پياوړتوب يا تکړه توب ښکاره کول يا څرګندول۔

**ـــــ کول** :- اف۔ تېزي کول ، چُستي کول۔

**ـــــ لرل** :- اف۔ تېزي لرل ، چُستي يا چابکي لرل۔

**بربښنا** :- (بْ + رې + شْ يا خْ + نا) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بربښناوې] (۱) ځلک، چنګ (۲) د اسمان پړقېدل ، په اسمان کښې د بجلۍ پړق ، پېلبو۔

دا نيمګړې هيڅ چا نه ده پوره کړې
تر بربښنـا ئې زيـاته نه ده بقا هېڅ (حميد)

**ـــــ کـول** :- اص ، ځلقېـدل ، پړقېـدل ، چـڼ کېـدل ، بربښـېدل ،ځلېدل،چرګېدل۔

**بربښناک** :- (بْ + رې + شْ يا خْ + نا + کْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا (مؤ ،وا : بربښناکه ، : بربښناکې] ځلانـد ، ځلقېـدونکے ، چـڼ کېـدونکے ، پړقېدونکے ، بربښېدُونکے۔

**بربښند** :- (بْ + رې + شَ + نْ + دْ يا خَ + نْ + دْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا : بربښنده ، ج : بربښندي)] (۱) ځلاند ، چڼ کېدونکے ، پړقېدونکے ، بربښېدونکے (۲) دردمند ، چې زور ئې اخستے وي۔خوږمن۔

**بربښند** :- (بْ + رِيْ + شَ يا خَ + نْ + دْ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ (مؤ ، وا : بربښنده ، ج : بربښندي)] تېز الوتُونکے۔

**بربښندُوکے** :- (بْ + رې + شَ يا خَ + نْ + دُوْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، ص، مذ ، وا ، ج : بربښندُوکي ، (مؤ ، وا : بربښندوکې)] و ـــ بربښند ۔

**بربښـول** :- (بْ + رِيْ + ش يا خ + وُ + ل) [اف : پ (قاموس) مص مت] الوزول ، تېزول۔

**بربښول** :- (بْ + رې + ش يا خ + و ،لْ) [پ ، مص مت] (۱) ځلکول ، پړقول ، چڼ کول (۲) دردول ، زور ورکول ، خوږول۔

**ځاے يا څيز بربښول** :- (اص) څهٔ څيز يا ځاے ځلکول ، ښکلے کول، ډولے کول۔

**زړهٔ بربښول** :- (اص) زړهٔ دردول ، په څهٔ خبره د چا زړهٔ ته زيات ازار رسول۔

**غاښ بربښول** :- (اص) (۱) د چا غاښونه په وهلو خوږول يا دردول ، څوک لړول (۲) د واؤرې يا سړو اوبو په څښلو غاښونه خوږېدل۔

**بربښولے** :- (بْ + رې + شَ + يا خَ + وْ + لَے) [پ ، اس مف ، مذ ، وا ، ج : بربښول (مؤ ، وا : بربښـولے)] (۱) ځلقولے ، پړقولے ، چڼ کولے (۲) دردولے ، خوږ کړے۔

**بربښـونګ** :- (ب + رې + شَ يا خَ + وَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ بربښونه

**بربښـونګ** :- (بْ + رِيْ + شَ يا خَ + وَ + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ بربښونه

**بربښونه** :- (بْ + رې + شَ يا خَ + و + نَه) [پ ، حمص] (۱) ځلقونه ، پړقونه ، ښکلے کونه ، چڼ کونه ، ډولے کونه (۲) دردونه ، خوږونه ، زور رسونه ۔

**بربښـونه** :- (بْ + رِيْ + شَ يا خَ + و + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] تېز الوزونه، تېزونه ، چابکونه۔

**بربښوُونکے** :- (بْ + رې + شَ يا خَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : بربښـوُونکي] (۱) ځلکـوُونکے ، پړقـوُونکے ، چـڼ کـوُونکے ،ښـکلے کوُونکے، ډولے کوُونکے (۲) دردوُونکے ، درد رسوُونکے ، خوږوُونکے۔

**بربښـوُونکے** :- (بْ + رِيْ + شَ يا خَ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ،وا ، ج : بربښوُونکي] غوځوُونکے ، شلوُونکے ، قطع کوُونکے۔

**بربښـېدل** :- (بْ + رې + شې يا خې + د ، لْ) [پ ، مص لا] (۱) ځلکېدل ، پړقېدل، چڼ کېدل ، (۲) درد کول ، دردېدل ، خوږېدل۔

**بربښېدل** :- (بْ + رِيْ + شې يا خې + د + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] تېزېدل ، الوتل۔

**بربښـېدلے** :- (بْ + رې + شې يا خې + د + لَے) [پ ، اس مف ، مذ ، وا ، ج : بربښېدلي] (۱) ځلکېدلے ، پړقېدلے ، چڼ کېدلے ، ډولے شوے ، ښکلے

شوے (۲) درډېدلے ، خوربدلے ۔

**بربښبدنګ** :-(بْ + رې + شې یا خې + دْ + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ بربښبدنه ۔

**بربښېدنه**:-(بْ + رې + شې یا خې + د + نَه) [پ ، حمص] (۱) ځلکېدنه پرقېدنه ، چڼ کېدنه (۲) درډېدنه ، خوربدنه ۔

**بربښېدنګ** :-(بْ + رِيْ + شې یا خې + دَ + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ بربښبدنه

**بربښېدنه** :-(بْ + رِيْ + شې یا خې + د + نَه) [اف : پ (قاموس)] تېز الوتنه ، ګرندے کېدنه۔

**بربښېدونکے** :-(بْ + رې + شې یاخې + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس مف مذ ، وا ، ج : بربښـــېدُونکي] (۱) ځلکېدونکے ،پرقېـــدونکے ، چـــڼ کېـــدونکے (۲) درډېدونکے ، خوربدونکے ۔

**بربښېدونکے** :-(بْ + رِيْ + شې یا خې + دُو + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مف ، مذ ، وا ، ج : بربښېدونکي] الوتونکے ، تېز یا ګرندے تلونکے

**بربښېدهٔ**:-(بْ + رې + شې یا خې + دْ + هٔ) [پ ، حمص] و ـ بربښېدنه

**بربښـېدهٔ** :-(بْ + رِيْ + شـې یـا خـې + دْ + هٔ) [اف : پ (قـاموس) حمـص] و ـــ بربښېدنه۔

**بربک** :-(بْ + رې + کْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بربکونـه ، بربکینـه] (۱) د چکر خورُونکي یا چورلېدُونکي څیز د اودرلو الـه ـ لکه د موټر بربک ، د سائیکل بربک (۲) د رېل ګاډي د سامان ډبـه ، (۳) پـه روان کـار کښې د څهٔ وخت دپاره بندېز یا چُټې یا وقفه۔

**ـــ راتلل** :-مح ـ څهٔ خبره ایسارېدل ، پـه څهٔ خبره کښې خنډ پېدا کېدل ، څهٔ کار اټالېدل۔

**ـــ کول** :- مح ـ چُټې کـول ، روان کـار د څـهٔ لـږ وخت یـا وقفـې دپـاره ایسارېدل ، وقفه کول۔

**ـــ لګول**:- مح (۱) د چُور لیدونکي څیز لکه موټر ، سائیکل او داسې بـل څیز د بربک پـه ذریعه ایسارول (۲) د څهٔ مصلحت پـه وجه روانه خبره بندول۔

**بري کاپ**:-(بَ + رِيْ + کا + پْ) [پ (عا) انګ : بربک اپ ، اس ، مذ] فوځي پربډ کښې بې تعلیمه عهدېدار د پربډ په ختمېدو د بربک اپ پـه ځـاے دا ټکے وائي ۔ یعني پربډ دې ختم شي۔

**بري کوټ**:-(بَ + رِيْ + کو + ټْ) [پ ، اس معر ، مذ ، وا] پـه سوات کښـې د یو ځاے نوم۔

**بربلي** :-(بَ + رې + لِيْ) [ه ، اس معر ، مؤ] د هندوستان یو ښار

**بربلۍ** :-(بْ + رې + لۍ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] هغـه غـوا چې هر کال لنګېږي۔

**ـــ کېدل** :- اف ، اص ـ د غوا هر کال بچے راؤړل۔

**بري ناک**:-(بَ+رِيْ+نا+کْ) [پ ،اس ص ،مذ] بريالے ،ګټندویه، فاتح۔

**بړ** :-(بَ + ړ) [ه ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بړونـه یـا بړینـه] یـو قسـم اونـه چې لـوئې لوئې پاڼې ئې وي ـ او ګوره سوبره وي۔

**بړ**:-(بَ+ ړْ) [پ (سو) اس ، مذ ، وا ، ج : بړونه] د مرزو مقابله یا شرط۔

**بـړ** :-(بَ + ړْ) [اف : پ (قـاموس) اس ص ، مـذ (مـؤ ، وا : بـړه ، ج : بـړې)] مُستعد ، اماده ، کار کولو ته تیار ۔

مالیدلي په دا سترګو دي پوهـږي
لکه نخښې د هر چا غبښې ته بړے (خوشحال)

**بړ** :-(ب + ړْ) [پ ، اس صو ، مذ] د اُوښ بړېدا ، یا د اوښ د مستۍ اواز ۔

**بـړادن** :-(بَ +ړا + د + نْ) [ه ، اس ، مـذ ، وا] کرسـمس ، د عیسٰـی علیـه السلام د پېدا اوښت ورځ ، پنځویشتم دسمبر ۔

**براژګه** :-(بْ + ړا + ژْ + ګـه) [اف : پ (قـاموس) اس ص ، مؤ ، وا ، ج: براژګې] مانده غوښه،هغه غوښه چې ځربه نهٔ وي ډنګره غوښه

**بړاس** :-(بْ + ړا + سْ) [پ ، ه : بهړاس ، اس ، مذ] (۱) ګرم لوګے ، بُخار ، (۲) غُصه ، کاوړ ۔

**ـــ ایستل** :- اص ـ زړهٔ تشول ، غُصه کول۔

**ـــ ختل**:- اص ،لوګے راوتل ، د اوبو د جوش په وخت بخار ترې وتل۔

**برانجا** :-(بْ + ړا + نْ + جا) [اف : پ (قاموس) ص] سست ، لټ ، ناراسته۔

**برانـډه** :-(ب + ړا + نْ + ډه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : برانـډې] د اور لویه شغله یا لمبه ، برباټه۔

**برانګه** :-(بْ + ړا + نْ + ګه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] وړانګه ، شُغله ، پلوشه

**برانګـه** :-(بْ + ړا + نْ + ګـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : برانګـې] ځیرړه ، رېښنانګه ،شلېدلې ،واژه،خلاصه۔

**برانګې برانګې** :-(اف) اص ـ څیـرې څیـرې ، ذرې ذرې ، ګـارې وارې ، ټکـرې ټکرې ، رېښنانګې رېښنانګې ، ریچې ریچې۔

**برانګې په ځړول** :-(اف) مح ، د چا جامې شلول ، د چا جامې رېښنانګې کول۔

**برانګې پـه ځړېدل** :-(اف) مـح ـ شلېدلې جامې اغوستل ، رېښـانګې اچول ، برانګې په زنګېدل۔

**برانګې په زنګېدل** :-(اف) مح ـ و ـــ برانګې په ځړېدل۔

**بړ بړ** :-(بَ + ړْ + بَ + ړْ) [پ ، اس مر ، مذ] خوښ خوښ ، په مزه کښې ، مرحبا۔

**بړ بړ راتلل** :-(اص) په خوشۍ خوشۍ راتلل ، په مزه راتلل۔

بړ بړ راشـــه اے زما د ســـترګو توره
خداے مې مه کړه د زړهٔ مینه له تا توره (عبدالقادر خټک)

**بړ بـړ** :-(ب + ړْ + ب + ړْ) [پ ، اس ، صو ، مـذ] (۱) د اوښ اواز چې د مستۍ پـه حالـت کښـې ئـې کـوي ، د اوښ تـالو وهـل (۲) پـه زوره خبرې ، په اوچت اواز بړغېدل ۔

**ـــ بړغېدل**:- اص ، په زوره خبرې کول ، په اوچت اواز بړغېدل ـ بړ بړ وئیل۔

**ـــ کول** :- اص ، و ـــ بړ بړ بړغېدل۔

**ـــ وئیل** :- اص ـ و ـــ بړبړ بړغېدل

**بړبړائي** :-(بَ + ړ + بَ + ړائي) [پ (وز +ب ، خ) اس ، صو ، مذ ، وا ، ج : بړبړې] (۱) په زوره بړغېدل ، (۲) د اوښ د مستۍ پـه حالـت کښـې تالو وهل ، بړبړے ۔

**بړ بړک** :-(بَ + ړْ + بَ + ړَ + کْ) [پ ، اس ، مذ ، وا] و ـ ابشار ۔

**بړبـــړو** :-(بَ + ړْ + بَ + ړُوْ) [پ ، اس ، ص ، مـــذ] (۱) پـــه اوچـــت اواز بړغېـدونکے (۲) بکواسـې ، فضـولې خبـرې کـوونکے ، بـې مطلبـه بړغېدونکے ۔

**بړبړے** :-(بَ + ړْ + بَ + ړَے) [پ، اس ، صو ، مذ ،وا ،ج : بړبړي] و- بړبړائے

**بړبـزي** :-(بَ + ړْ + بَ + زَي) [اف : پ (قـاموس) اس ، صـو ، مـذ] د نـر وز یـا پسهٔ د مستۍ په وخت کښې اواز ۔

**بـــړبس** :-(بَ + ړ + بَ ، س) [اف : پ (قـاموس) ص ، مـذ] جـلال ، لـوئي، عظمت ، سترولي۔

**بړبښـــکي** :-(بُ + ړْ + بُ + شْ یـا خْ + کـي) [اف : پ (قـاموس) اس، مـؤ] بړبوکۍ ، د پېریانو ډولۍ ، بُونواله ، خوپنے ، خیپنې۔

**بړبکۍ** :-(بَ + ړْ + ب + کۍ) [پ ، اس ، مؤ] و ـــ بړبُوکۍ

**بړبنګ** :-(بُ + ړْ + بَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، (مؤ ، وا : بُړبنګه ، ج : بُړبنګې)] (۱) یـو غرئیـز بـوټے چې لـرګے ئـې پوست ، چغـزي او پـه مېنځ کښې ډډ وي (۲) کم عقل او ناپوهه سړے (مؤنث واحد او جمع په دوېمه معنٰی کښې استعمالېږي)

**بُربوړے** :-(بُ+رْ+بُوْ+ړے) [پ، اس، مذ،وا] و ـــــ ابشار.

**بربوزه** :-(بَ+رْ+بُوْ+زه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] سخته رپېدنه، سخته لرزه.

**بربوزي** :-(بَ+رْ+بُو+زي) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] غُصه ناکې او ترخې خبرې، سوځوُونکې خبرې، خفه کوونکې خبرې.

ـــــ **اچول** :-اف، اص.غصه ناکې او ترخې خبرې کول، خفه کوُونکې خبرې کول.

ـــــ **کول** :-اف، اص.خفه کوونکې او زهېروونکې خبرې کول، پېغور جنه وېنا کول، د سپکولو په ډول خبرې کول.

**بربوقی** :-(بَ+رْ+بُوْ+قی) [پ(سو) اس، مؤ] و ـــ بربکۍ.

**بربوکۍ** :-(بَ+رْ+بُوْ+کۍ) [پ، اس، مؤ] (۱) بربکۍ، بربوقۍ.د اوبو بومبخه، د اوبو دپاسه کټورۍ (۲) د پيريانو ډولۍ، بربوکۍ، بُونوالـه، د بادچکر، خوېنۍ.

بربوکۍ چې پوزې واخلي پورته رومي
نۀ پوهېـــږم چې په کوم لوري تۀ ما وړي (خوشحال)

(۳) اف: اس.يو بوټے چې بار وړي هم ورته وائي.

**بربوکۍ په شان تلل** :-اص.په بيړه تلل، زر تلل، د سترګو په ځنبل کښې روانېدل.

**بربوکۍ په شان راتلل** :-(اص) ناڅاپي راتلل، د نيامه راتلل، په بيړه راتلل.

ـــــ **راتلل** :-اص.د پيريانو ډولۍ پورته کېدل، خوېنۍ جوړېدل، بونواله الوتل.

**بربَه** :-(بَ+رْ+بَه) [پ(سو) اس، مؤ، وا، ج: بربې] يو قسم کوړکۍ چې د مرغو يا نورو ځناورو د نيولو دپاره داسې جوړولے شي چې يو غار اوکنې دپاسه د کانړي تبۍ په اټکل پرېږدُوروي.کله چې ځۀ ځيز ورننوزي نو هغه تبۍ پرې راپرېوزي او په غار کښې هغه ځيز ايسار شي.

**بربيته** :-(بَ+رِ+بيْ+تَه) [پ(ب، خ) اس، مؤ، وا، ج: بربيتې] يوه توره مرغۍ چې سحر وختې ډېر خوږ اواز اوباسي.تورانکه.

**برتېدل** :-(بْ+رِ+تي+دَ، ل) [پ(وز) مص لا] برچېدل، په زوره خبرې يا خندا کول، برقېدل.

**برچ** :-(بْ+رَ+چْ) [پ، اس صو، مذ] (۱) اينـړے، نـڅرے، انتروشـے، پرنجے (۲) غصه، قهر، کاوړ (۳) د ځنګلي مارغانو اواز.

ـــــ **پرې ايستل**:مح، په چا غصه کول، په چا ورغصه کېدل، برچ پرې وهل

ـــــ **پرې وهل** :-مح، و ـــــ برچ پرې ايستل.

ـــــ **وهل** :-مح (۱) اينـړے کول، پرنجے کول، نـڅرے کول، انتروشـے کول (۲) په زوره خندل، برچا.

**برچا** :-(بْ+رَ+چا) [پ، اس، صو، مؤ] په زوره خندا.

**برچ برچ** :-(اص) په زوره زوره.

ـــــ **خندل** :-اص.په زوره زوره خندل.

**برچول** :-(بْ+رِ+چَ+وَ، لْ) [اف: پ (قاموس) مص مت] (۱) اينـړے يا پـرنجے وروسـتل (۲) ب، خ.د کنځلـو پـه ډول وئيلے کېـږي.غـوول، بدکاري کول.

**برچولے** :-(بْ+رِ+چَ+و+لَے) [اف: پ (قاموس) مف، مذ،وا، ج: برچولي] (۱) اينـړے يا پرنجے وروستے شوے (۲) ب، خ: غوولے.

**برچونګ** :-(بْ+رِ+چَ+وَ+نْ+ګْ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـــ برچونه

**برچونه**:-(بْ+رِ+چَ+و+نه) [اف: پ (قاموس) حمص] (۱) اينـړے يـا پـرنجے وروستنه (۲) ب، خ: غوونه.

**برچوونکے** :-(بْ+رِ+چَ+وُوْ+نْ+کَے) [اف: پ (قاموس) اس فا ع، مذ، وا، ج: برچوُونکي] (۱) اينـړے يا پـرنجے وروستونکے (۲) ب، خ: غوُونکے.

**برچے** :-(بْ+رِ+چَے) [اف: پ (قاموس) اس صو، مذ] اينـړے، انتروشـے، پرنجے.

**برچېدل** :-(بْ+رِ+چي+د+لْ) [اف: پ (قاموس) مـص لا] (۱) اينـړے يـا انتروشے کول، پرنجے کول، نڅرے کول (۲) ب، خ: غوولے کېدل.

**برچېدل** :-(بْ+رْ+چي+د+لْ) [پ (ب، خ) مص لا] و ـــ برتېدل.

**برچېدلے** :-(بْ+رْ+چي+د+لَے) [اف: پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج: برچېدلي] (۱) انتروشے يـا اينـړے کـړے شـوے (۲) ب، خ: غـوولے شوے.

**برچېدنګ** :-(بْ+رِ+چي+دَ+نْ+ګ) [اف: پـه (قـاموس) حمـص] و ـــــ برچېدنه.

**برچېدنه** :-(بْ+رْ+چي+د+نَه) [اف: پ (قاموس) حمص] (۱) انتروشے يا پرنجے کونه (۲) غوولے کېدنه.

**برچېدونکے** :-(بْ+رِ+چي+دُوْ+نْ+کَے) [اف: پ (قاموس) فـا ع، مذ، وا، ج: برچېدونکي] انتروشے يا پرنجے کوُونکے.

**برچېدُونکے** :-(بْ+رَ+چي+دُوْ+نْ+کَے) [پ (ب، خ) اس، مف، مذ،وا، ج: برچېدونکي] غوُولے کېدُونکے.

**برچېدۀ**:-(بْ+رْ+چي+دۀ) [اف: پ (قاموس) حمص] (۱) انتروشے کېدۀ، پرنجے کېدۀ پرنجېدۀ (۲) ب، خ: غوولے کېدۀ.

**برد** :-(بَ+رْ+دْ) [پ (صوابي) اس، مذ] شرط، مقابله.

ـــــ **تړل** :-(صوابي) اص.شرط تړل، برد لګول.

ـــــ **لګول** :-(صوابي) اص.و ـــــ برد تړل.

**بردانګۍ** :-(بَ+رْ+دا+نْ+ګۍ) [پ (ګن) اس، مؤ] هغه خاورين مټ چې په ژمي کښې اوبۀ په کښې ګرمولے شي.دا په يو ځاے کښې ښخ وي او لاندې ترې د سرې اور بلولې شي.

**برستن** :-(بْ+رَ+سْ+تَ+نْ) [پ، اس،مؤ، وا، ج: برستنې] (۱) شيرک، کنځړ، تلتک، نالۍ، کنځړ، تولتک

څۀ انصاف دے چې ئې يو اشـــنا په ګورشي
بل په پروت وي په پالنګ په سرۀ برستن کښې
(عليخان)

(۲) اص: سوړ، بېکاره، ناراست، بنيادم.

ـــــ **اځنړل [اځنل]** :-مص لا، برستن ګنډل.

ـــــ **تودول** :-اص، (۱) ځان سره ځوک ځملول، د چا سره ځملاستل (۲) په برستن کښې باد پرېښودل.

ـــــ **ډکول** :-اص.برستن، شيرک يا کنځړ ته مالوچ اچول.

**برستنې غوړول** :-(اص) (۱) پـه ژمـي کښـې د سـپرو وربرو د لـرې کولـو دپـاره برسـتنې نمـر تـه ويـړول (۲) هغـه وريځې چې مازيګر قبلې ارخ تـه سـرې سرې ښکاري.خلق وائي چې "بوډۍ برستنې غوړولې دي".

**په برستن کښې پټېدل** :-(اص) (۱) برستن د ځان نه چاپېره کول. (۲) په ځۀ خبره ځان نا خبره کول.په چا غم غرض نۀ کول.

**برستنګۍ** :-(بْ+رَ+سْ+تَ+نْ+ګۍ) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] يوه مرغۍ چې د ديوالونو سُوړې لټوي.

**برغونج** :-(بَ+رْ+غُوْ+نْ+جْ) [پ، اس، مذ] يو قسم پلے چې اکثر په دارو کښې استعمالېږي.کاکړاسينګي.

**برقا** :-(بْ+رَ+قا) [پ (صوابي) اس، مؤ] په زوره خندا يا خبرې

**بـرق بـړوق** :-(بْ+رَ+قْ+بْ+ړُوْ+قْ) [پ(سو) اس،ص] زرق بـرق، چـڼ کېدونکے.

**برقندے** :-(بَ+رْ+قَ+نْ+دَے) [پ (ظفر) اس ص، مذ،وا، ج: برقندي]

(۱) ځلېدونکے ، ځلاند ، چنې کېدونکے ، پرقېدونکے (۲) هغه څوک چې خبره په زړهٔ کښې نهٔ شي ایسارولے.

**برقول** :-(بْ + رِ + قَ + وَ + لْ) [پ ، مص مت] ځلکول ، چنې کول ، پرقول .

**برقونه** :-(بْ + رِ + قَ + وْ + نَه) [پ ، حمص] ځلکونه، ځلونه ،چنې کونه ، پرقونه .

**برقوونکے** :-(بْ + رِ + ق + وُو + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: برقوُونکي] ځلوُونکے ، چنې کوُونکے ، پرقوُونکے .

**برقېدل** :-(بْ + رَ + قې + دَ + لْ) [پ ، مص لا] ځلېدل ، چنې کېدل ، پرقېدل، ځلقېدل.

**برقېدل** :-(بْ + رِ + قې + دَ + لْ) [پ (صوابي) مص لا] و ـــ برېبدل.

**برقېدنه** :-(بْ + رِ + قې + دْ + نَه) [پ ، حمص] ځلکېدنه ، ځلېدنه ، چنې کېدنه ، پرقېدنه.

**برقېدونکے** :-(بْ + رِ + قې + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، مف ، مذ ،وا ج : برقېدونکي] ځلکېدونکے ، ځلېدونکے ، چنې کېدونکے ، پرقېدونکے .

**برگړند** :-(بَ + رِ + گْ + رَ + نْ + دْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و- بره گړه.

**برگړندي** :-(بَ + رِ + گَ + رَ + نْ + دئي) [پ ، اس ، مذ] و ـــ بره گړه.

**برگنډي** :-(بَ + رِ + گَ + نْ + ډيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و- بره گړه

**ـــــ کول** :- اف ، اص-بره گړه کول ، سترې مشي کول ، روغ بړ کول.

**برمبکې** :-(بْ + رَ + مْ + بَ + کې) [پ (ظفر) اس ، مذ] باډیوه ، باجوه ، گوډۍ ، پتنگ.

**برند** :-(بَ + رَ+نْ + دْ) [اف : پ ، (قاموس) اس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا: برنده،ج : برندې] چالاک ، رند .

**برنډه** :-(ب + رَ+نْ + ډَه) [اف ،پ (قاموس) اس مؤ ، وا ، ج : برنډې] و ـــ برانډه .

**برنگ** :-( بْ + رَ +نْ + گْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، وج: برنگونه] دالان ، برانډه.

**برنگ** :-(بْ + رَ + نْ + گْ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ (مؤ ، وا: برنگه ، ج : برنگې] حېران ، وارخطا ، دوجاله ، په دوه کښې.

**برنگ** :-(بْ + رِ + نْ + گْ) [اف : پ (قاموس) اس صو مذ] د ژړا اواز ایں ایں.

**برنگائي** :-(بْ + رَ + نْ + گائي) [پ (وز) اس ، مذ ، وا] د غلبل دوه غانبیزه یا دوه غاښے لرګے.

**برنگهار** :-(بْ + رِ + نْ + گَ + ها + رْ) [اف : پ (قاموس) اس صف ، مذ] د ماشوم په یو مخ د ژړا اواز .

**برنگې** :-(بَ + رَ + نْ + گې) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ،وا ، ج : برنگې] منداڼو ، جهگنې ، مندوبې ، د لسۍ د شاربلو څېز.

**برنگۍ** :-(بَ + رَ + نْ + گۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) هغه تسمه چې منداڼو پرې تاوولے شي (۲) د غرهٔ څوکه.

**برنگې برنگولې** :-(بْ + رَ + نْ + گې + بْ + رَ + نْ + گو + لې) [پ (سو) ص] خلاص وُرونه ، ارتې بېرتې او خلاصې دروازې.

**برنگېدل** :-(بْ + رِ + نْ + گې + دَ + لْ) [پ (وز) مص لا (۱) د کټې، مېښې یا سنډا اواز کول (۲) ژړا شروع کول (۳) په ژړغوني اواز کښې خبرې کول.

**برنگېدل** :-(بْ+رَ+نْ+گې+دَ+لْ) [اف: پ (قاموس) مص لا حېرانېدل ، اریانېدل.

**برنگېدلے** :-(بْ + رَ + نْ + گې + دْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف، مذ ، وا ، ج : برنگېدلي] اول په ژړا سر شوے.

**برنگېدنه** :-(بْ + رَ + نْ + گې + دْ + نَه) [اف : پ (قاموس ) حمص ] اول په ژړا سر کېدنه .

**برنگېدونکے** :-(بْ + رَ +نْ + گې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) فا ع،مذ ، وا ، ج : برنگېدونکي ] په ژړا سرکېدونکے ماشوم.

**برنگېدهٔ** :-(بْ + رَ + نْ + گې + دهٔ) [اف : پ (قاموس) حمص] د ماشوم اول په ژړا سر کېدهٔ.

**برنۍ** :-(بَ + رِ + نۍ) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ] یو قسم غرئیزه وُنه.

**برنۍ** :-(بَ + رِ + نۍ) د زنګون سترګه ، د زنگون ټوټې ، د زنگانهٔ کونډۍ.

**برو** :-(بَ + رُو) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : برونه] هغه لرګې چې تنستې پرې بیائې رابیائي.

**برو** :-(بَ + رُوْ) [پ (سو) اس ، ص ، مذ ،وا] مجذوب ، مذوب.

**بروا** :-(بَ + رِ + وا) [پ ، ه: بهروا ، اس ، ص ، مذ ،وا ، ج: برواگان یا بروو گون ، (مؤ ، وا ، ج : بروی)] (۱) دله ، بې غېرت ، بې شرم ، بې حیا ، دیوس ، دوُوس (۲) د ښځو دلال.

**برواتوب** :-(بَروا + تو + بْ) [پ ، اس ، ص ، مذ] (۱) دله توب ، بې شرمي ، بې غېرتي ، بې حیائي ، دوؤسي (۲) د ښځو دلالي.

**برواک** :-(بَ + رِ + وا + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ،مذ (مؤ ، وا: برواکه ، ج : برواکې)] اواره ، لُوچه ، خوشکے ، یله گرد .

**بروالي** :-(بَ + رِ + وا + لِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] دله توب ، دلالي.

**بروائے** :-(بَ + رِ + وائے) [پ ، اس ، ص مذ ، وا ، ج : بروي (مؤ بروی)] و ـــ بروا

**بروبن** :-(بْ +رو + بَ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا (مؤ ، وا: بروبنه ، ج : بروبنې)] هغه څوک چې شونډې ئې پرسېدلې وي-پندره ور.

**بروت** :-(بْ + رو + تْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بروتونه] یو قسم وابنهٔ چې نبغ ټوکېږي-او لوئېږي-شرغشے .

**بروس** :-(بْ + رُوْ + سْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، (مو ، وا: بروسه ج: بروسې)] سوخت ، په قهر ،تریو مخے ، د غصې نه پرسېدلے د قهره ډک.

اے په خپل گمان کښې بروس
د اصلي کاره مایوس (خوشحال)

**بروس توب** :-(بروس + تو + بْ) [پ ، اس ، ص ، مذ] بروس والے ، بروستیا ، تریو تندے نیول ، د غصې نه پرسېدلے.

**بروستیا** :-(بروس + تْ + یا) [پ ، اس ، ص مؤ] و ـــ بروس توب.

**بروس والے** :-(بروس + وا + لَے) [پ ، اس ص ، مذ] و ـــ بروس توب.

**بروسول** :-(بْ + رُوْ + سَ + وْ + لْ) [پ ، مص مت] د غصې نه پرسول ، خفه کول، تنگول.

**بروسونگ** :-(بْ + رُوْ + سَ + وْ + نْ + گْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ بروسونه.

**بروسونه** :-(بْ + رُوْ + سَ + و + نَه) [پ ، حمص] د غصې نه پرسونه خفه کونه ، تنگونه-قهرونه ، بروسونگ.

**بروسوُنکے** :-(بْ + رُو + سَ + وُو + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: بروسوُونکي] د غصې نه پرسوُونکے ، غصه کوُونکے ، قهرورسـتُونکے ، خفه کوُونکے ، بې طبعې کوُونکے.

**بروسېدل** :-(بْ + رُو + سې + دَ + لْ) [پ ، مص لا] د غصې نه پرسېدل ، غصه کېدل ، قهرېدل ، خفه کېدل.

**بروسېد نگ** :-(بْ + رُو + سې + دَ + نْ + گْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ بروسېدنه.

**بروسېدنه** :-(بْ + رُوْ + سې + دَ + نَه) [پ ، حمص] د غصې نه پرسېدنه ، بروسېدهٔ ، قهرېدنه ، خفه کېدنه .

**بروسېدونکے** :-(بْ + رُوْ + سې + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، مف ، مذ ، وا ، ج : بروسېدُونکي] د غصې نه پرسېدونکے ، قهرېدونکے ، خفه کېدونکے.

**بروسېدهٔ** :-(بْ + رو + سې + دهٔ) [پ ، حمص] و ـــ بروسېدنه.

**بروکا** :-(بْ + رُوْ + کا) [پ (صوابي) اس ، مؤ ، وا ، ج : بروکې] بوقه ، بوکا ، هغه لوښے چې د کوهي نه اوبهٔ پکښې راؤباسي.

**برول**:-(بَ+ړَ+ۇ+لْ) [پ، مص، مت] (۱) د مستۍ په حالت کښې په اوښ تالو وهل (۲) د مستۍ په وخت کښې څۀ څناور د مادې سره پرېښودل.

**برولے** :-(بْ+ړ+وْ+لَے) [پ، مف، مذ، وا، ج: برولي] (۱) د مستۍ په حالت کښې په اوښ تالو وهلے شوے (۲) د مستۍ په وخت کښې څۀ څناور د مادې سره پرېښے شوے.

**برومے** :-(بَ+رو+مے) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] (۱) اورنے وښے، د ماشوم د ترلو ټوکے (۲) د تهمت، تور، الزام، بدنامه.

**ـــــ کول** :- اف، اص، تور پورې کول، بدناموِل، تهمت لګول.

**برونه** :-(بْ+ړَ+وْ+نَه) [پ، حمص] (۱) په اوښ تالو وهنه،

(۲) څناور د مستۍ په حالت کښې د مادې سره پرېښودنه.

**برووُنکے** :-(بْ+ړَ+وُو+نْ+کَے) [پ، اس، فاع، مذ، وا، ج: بروونکي]

(۱) په اوښ تالووهونکے، (۲) څۀ څناور د مستۍ په حالت کښې د مادې سره پرېښودونکے.

**بروه** :-(بَ+رْ+وَه) [پ، اس، ص، مذ، ا، ج: بروې] و ـ بروا.

**بره** :-(بَ+ړَه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: برې] يو غرئيز واښۀ.

**بره ګره** :-(بَ+رَه+ګَ+رَه) [پ، اس، مؤ، وا، ج: برې ګرې] و ـــ بره ګرندې.

**برے** :-(بُ+ړَے) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: بُرې يا بُريان]

(۱) بُورے، يوؤلس ډزے ټوپک، د ججورې ټوپک، (۲) هغه څوک چې غوږونه او پوزه ئې پرې کړې شوي وي. (۳) هغه لوښې چې څنډې، غاړې يا مورګ يې ماتې وي.

**بره بره** :-(بَ+رَه+بَ+رَه) [پ، اس، صو] په زور زور، اوچت اواز سره.

**په بره بره بلل**:-(اص) په زور رابلل، خامخا رابلل.

دا خو زۀ د سادګۍ عشق ته هوس کړم

ګنـه څـوک بـولـې بـلا په بره بره (حميد)

**په بره بره خندل**:-(اص) په زور زور خندل، په اوچت اواز خندل، په برچ برچ خندل.

**برۍ**:-(بَ+رَۍ) [پ، اس، مو] وښيا، د دالو او مرچ مسالې نه جوړې کړې غونډې چې د ترکارۍ په ډول پخولے شي. او خوند ئې ډېر ترسکون وي.

**بريا**:-(بَ+رَ+يا) [اف: پ (قاموس) ص] بريا، لاس ته راغلې، حاصل.

**ـــــ کول** :- اف، مص مت، بريا کول، لاس ته کول، حاصلول.

**ـــــ کېدل** :- اف، مص لا، برياکېدل، لاس ته کېدل، حاصلېدل.

**برېچ** :-(بَ+رِې+چ) [پ، اس، مذ، وا، ج (مؤ، وا، برېچه، ج: برېچې)]

(۱) د پښتنو د يوې قبيلې نوم (۲) د برچې قبلې غړے.

**برېښ** :-(بَ+رِې+ښ) [پ، اس، مذ، وا، ج (مؤ، وا: برېښه، ج: برېښ)] و ـ برېچ

دا بيا تو دې لونګين تور دې رخسار دے

د سپينو برېښو غر په هندوستان دے (فتح خان رابيا)

**برېښے** :-(بَ+رِې+ښَے) [پ، اس، مذ، وا، ج: برېښي، (مؤ، وا: برېښه، ج: برېښې)] ملګرے، مل، فتح خان برېښ د شپېتو ملګرو سره هندوستان ته لاړ وو. د هغې په مناسبت ملګري يا مل ته برېښي وائي.

**برېدل** :-(بَ+رِې+دَ+لْ) [پ، مص لا] (۱) د او ـ د مستۍ په حالت کښې تالو وهل (۲) د مادې سره د يو ځاے کېدو په وخت د څناور د مستۍ اواز (۳) بکواس کول، پوچ ږغېدل، عبث ويناکول.

**برېدلے** :-(بَ+رِې+دَ+لَے) [پ، مف، مذ و وا، ج: برېدلي] (۱) د اوښ د مستۍ په حالت کښې تالو وهلے (۲) د مادې سره د يو ځاے کېدو په وخت د څناور د مستۍ اواز ايستلے (۳) پوچ او عبث ږغېدلے.

**برېدنه** :-(بَ+رِې+دْ+نَه) [پ، حمص] (۱) د اوښ د مستۍ په حالت کښې تالو وهنه، (۲) د مادې سره د يو ځاے کېدو په وخت د څناور مستۍ کونه (۳) بکواس او عبثه وينا کونه. پوچ ږغېدنه.

**برېدونکے** :-(بَ+رِې+دُو+نْ+کَے) [پ، اس، فاع، مذ، وا، ج: برېدونکي]

(۱) د مستۍ په حالت کښې تالو وهونکے اوښ. (۲) د مادې سره يو ځاے کېدونکے څناور (۳) بکواس او عبثه وينا کوُونکے، پُوچ ږغېدونکے.

**برې مانس** :-(بَ+رِيْ+ما+ن+رَ+سْ) [پ (عا) ه: بهلامانس، اس، ص، مذ، وا] مشروټ.

**برينجے** :-(بْ+رِي+نْ+جَے) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: برينجي] ببرينجے، پلوے، يو قسم ټُوت.

**برينچغ** :-(بَ+رِيْ+نْ+چَ+غْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: برينچغونه] بارينچغ، شارينګه.

**برينګ** :-(بَ+رِيْ+نْ+ګْ) [اف: پ (قاموس) اس مذ] و ـ برنګ.

**برينګا** :-(بَ+رِي+نْ+ګا) [پ، (خل) اس و ص مذ] بې کار، سست، بې وجې.

**برينګا** :-(بْ+رِيْ+نْ+ګا) [پ (ظفر) اس، ص، مذ (مؤ، وا: برينګۍ، ج: برينګيائې)] کوږ سترګے، چغر.

**برينګک** :-(بْ+رِيْ+نْ+ګ+کْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] سر بلانډے، سربانډے، سر بانے، هغه ورکوټې خو مضبوطه رسۍ چې ايوه او جغ د يو بل سره پرې ترلے شي.

**برينګن** :-(بْ+رِيْ+نْ+ګَ+نْ) [پ (ظفر) اس ص، مذ، وا (مؤ، وا: برينګنه، ج: برينګنې)] هر وخت ژړا ته جوړ ماشوم، ژاړندو، هغه ماشوم چې ژړا ئې په سترګو کښې وي.

**بز**:-(بْ+زْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] د ونې نازکې او تنکۍ څانګې.

**بز** :-(بَ+زْ) [پ، ادس، صو، مذ] (۱) د مچۍ د الوتو اواز (۲) د خېټې د باد اواز، (۳) د پېغور په ډول وئيلے کېږي.

**بز** :-(بُ+زْ) [فا، اس، مذ، وا، ج: بُزان (مؤ، وا: بزه، ج: بزې)] وَز، نر پسۀ

**بزاز**:-(بَ+زا+زْ) [ع، اس، مذ، وا، ج: بزازان] ټوکې خرڅوونکے، د کپړې سوداګر

**بزازي**-(بَ+زا+زِيْ) [پ، تر، اس، مؤ] د ټُوکو خرڅولو کار، د کپړې سوداګري.

**بزدل**:-(بُ+زْ+د+لْ) [فا، ص، مذ، وا، ج: بزدلان يا بزدلون (مؤ، وا: بزدله، ج: بزدلې)] يرېدُونکے، ډارن، يرندُونکے، د کمزوري زړۀ خاوند.

**بزدلي**-(بُ+زْ+د+لِيْ) [فا، اس، مؤ] يره، ډار، د زړۀ کمزوري.

**بزرجمهر**:-(بُ+زُ+رْ+جُ+مِ+ه+رْ) [فا، اس، معر، مذ] د نوشېروان بادشاه د وزيراعظم نوم.

**بزرګ**:-(بُ+زَ+رْ+ګْ) [فا، اس، مذ، وا، ج: بزرګان، بزرګون (مؤ، وا: بزرګه، ج: بزرګې)] (۱) ولي، زېرک، د برخې خاوند نېک سړے، د الله پاک نيازبين، (۲) مشر، د لوے عمر سړے د پوخ عمر.

**بزرګر**-(بَ+زَ+رْ+ګَ+رْ) [فا، اس، مذ: وا] زميندار، کاشتکار کرونده کوُونکے، بزګر، کښبے، دهقان.

بـزر ګـر وکړ د کيلې هنر بنۀ زده

بازارګان په خپل قماش پوهېږي بنۀ (خوشحال)

**بزرګوار** :-(بُ+زُ+رْ+ګَ+وا+رْ) [فا، اس، ص، مذ، وا، ج: بزرګواران، (مؤ، وا: بزرګواره، ج: بزرګوارې)] لوے، مشر، ستر، نېک.

همګې بزرګواران چې ځان په وائي

تـر هـمـۀ بـزرګوار دے رب زما (رحمان)

**بزرګه مياشت** :-(بْ+زَ+رْ+ګَه+مْ+يا+شْ+تْ) [پ، اس، معر، مؤ] دَ

رجب میاشت ، د خدا ے میاشت ، د زکوة میاشت.

**بزرګه میاشت دبره کېدل** :-(اص) د رجب میاشت راختـل ، د خدا ے تعالـیٰ میاشت د بره کېدل ، بزرګه میاشت نوې کېدل.

**بزرګه میاشت نوې کېدل** :-(اص) و ـــ بزرګه میاشت د بره کېدل.

**بزرګه ورځ** :-(بْ+زَ+رْ+ګه+وْ+رَ+زْ) [پ ، اس ، ص ، مؤ ،وا ، ج : بزرګې ورځې] ښهٔ ورځ ، لکه جمعه ، اختر او داسې نورې.

**بزرګي** :-(بْ+زَ+رْ+ګيْ) [فا ، اس ، مؤ] (۱) ښهٔ سړیتوب ، خدا ے تعالـیٰ ته نزدیکت ، پاک والے ، د خدا ے تعالـیٰ نیازبیني (۲) لوئي ، مشري ، سترتوب ، ستروالے.

**بُزغلے** :-(بُ+زْ+غَ+لَے) [پ (روسي قـاموس) اس ، مـذ ، وا] بـوزغلے ، پنیري ، کاڼ

**بزغنجر** :-(بْ+زْ+غَ+نْ+جَ+رْ) [اف: پ(قاموس) ص، مذ ، (مؤ ، وا: بزغنجره ، ج : بزغنجرې] مانده ، کمزورے ، اېڼ ، ډنګر.

**بزغي** :-(بْ+زْ+غيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] یوه وړه دانه چې اکثر په سترګه یا څټ راخېژي او زَوه کوي.

**بزکي** :-(بْ+زْ+کَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، صو ، مـذ] د مچۍ یا د هغې په شان د نورو څیزونو د وزرو اواز.

**بزګـر** :-(بْ+زْ+ګَ+رْ) [اف : پ (قـاموس) اس، مـذ (مـؤ ، وا: بزګـره ج : بزګرې] و ـــ بزرګر.

ـــ **کول**:-(اف) اص.دهقان جوړول،کَښبے کول. زمکه په برخه ورکول.

ـــ **کېدل** :-(اف) اص ـ دهقـان جوړېدل ، کـښبے کـېدل ، زمکـه پـه برخـه اخستـل.

**بزګـري** :-(بْ+زْ+ګَ+رِيْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] دهقـان ، کـښبـي توب، کاشتکاري.

**بُـزل** :-(بُ+زْ+لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص مـت] پیونـدول ، پـه جـامو ټکـړه لګول یا ګنډل ، پېزار ته پېوند لګول.

**بُزلے** :-(بُ+زْ+لَے) [اف: پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج : بُزلـي] پېونـد لګېدلے ، په جامو ټکړه لګېدلې ، ګنډلے ، پېزار پېوند شوے.

**بزم** :-(بَ+زَ+مْ) [فا ، اس ، مذ] مجلس ، محفل.

ستا په بزم کښې مې جام د شراب وچش
کـه ساغر مې په چشمه د افتاب وچش (کاظم خان)

**بزم آراسته کول** :- مح. محفل جوړول ، د خوند مجلس جوړول.

**بزم** :-(بَ+زْ+مْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بزمونه] دغـرهٔ د څوبې یا اُوترائي لمن.

**بُزنه** :-(بُ+زْ+نه) [اف :پ (قـاموس) حمص] پېوند لګـول ، پـه جـامو ټکـړه لګونه ، ګنډنه ، پېزار ته پېوند لګونه.

**بزنے** :-(بَ+زَ+نَے) [پ (ب ، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : بزني (مؤ ، وا: بزنۍ)] مېړنے ، ناسکه.

**بُزوونکے** :-(بُ+زْ+وُوْ+نْ+کَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، فـا ع ، مذ ، وا ، ج : بزوُونکي] موچي ، پېوند لګوُونکے.

**بزه**:-(بْ+زَهْ) [پ ،اس ، مؤ ، وا ، ج : بزې] اُوزه ، وُزه ، چېلۍ ، بزه.

**بزه** :-(بْ+زَه) [پ (مر+ګن) ص ، مؤ] شلېدلې ، بژه ، څیرې.

ـــ **کول** :-(اص) بژه کول ، شلول ، څیرې کول.

ـــ **کېدل** :-(اص) بژه کېدل ، شلېدل ، څیرې کېدل.

**بزه** :-(بَ+زَهْ) [پ (ظفر) اس ، مؤ ، وا ، ج : بزې] بائیکړ ، یو غرئیز بوټے.

**بـزه** :-(بَ+زْ+زَه) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بـزې] یـو ورکـوټے چیـنجے چـې ربښمین او ورین ټُوکي یا رَخت خوري.

**بزهار** :-(بْ+زْ+ها+رْ) [اف : پ (قاموس) اس، صو، مذ] و ـ بُزکې.

**بزه ګار** :-(بَ+زَهْ+ګا+رْ) [پ (ب ، خ) اس ، ص ، مـذ (مؤ ، وا: بزه ګـار ، ج : بزه ګارې) ] (۱) ترپوزو ، تنګ (۲) شرمنده (۳) ګناهګار.

په دا سپینه ږیره ما فضیحت مه کړه
کـه په توره ږیره خـر څو بزه ګار یم (خوشحال)

ـــ **کول** :- مص مت ، ترپوزو راوستل ، تنګول.

ـــ **کېدل** :- مص لا ، ترپوزو کېدل ، تنګېدل.

**بـزه ګـارول** :-(بَ+زَه+ګـا+رَ+وَ+لْ) [پ ، مـص ، مـت] تنګـول ، تـر پوزو راوستل.

**بزه ګارېدل** :-(بَ+زَه+ګا+رې+دَ+لْ) [پ ، مص لا] تنګېدل ، ترپوزو راتلل.

**بژانګه** :-(بَ+ژا+نْ+ګه) [پ ، (بنو) اس ، صـو ، مـؤ ، وا ، ج : بژانګې] پـه زور اواز ، چغه ، کرېژه.

**بژانګې بژانګوري** :-(بْ+ژا+نْ+ګيْ+بْ+ژا+نْ+ګُو+رِيْ) [پ (ب،خ) ص] څیرې ویرې ، بزه بزه،چیرړې چیرړې ، ګارې وارې.

**بژ بژ** :-(بَ+ژْ+بَ+ژْ) [پ (ب ، خ) اس ، صو ، مذ] و ـــ بژا.

ـــ **کول** :- مص مت ، د وینې یا د اوبو اواز کول.

**بژبژائي** :-(بَ+ژْ+بَ+ژائي) [پ (ب ، خ) اس ، صـو، مـذ ، وا ، ج: بژبـژي] بژا ، د اوبو یا د وینې په زور داري.

ـــ **کول** :- (ب ، خ) اص.بژبژې وهل ، د اوبو یا وینې په زور زور راوتل.

ـــ **وهل** :- (ب ، خ) اص.و ـــ بژ بژائي کول.

**بژ بژائے** :-(بَ+ژْ+بَ+ژا+ئے) [پ (بنو) اس ، مذ ، وا ، ج : بژبـژي] بَغنـدے ، پَښندے ، ګډُولے ، د لرګي څرخ ، لټو.

**بـژل** :-(بْ+ژْ ، لْ) [پ (ظفر) مـص مـت] (۱) بـژه کـول ، څیـرې کـول ، شـلول (۲) حلالول ، وینه ویستل.

**بـژوه** :-(بَ+ژْ+وَه) [پ (ب ، خ) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بـژوې] بـروه ، تـروړې ، لومبړه ، دا د شپې چغې وهي او روړې اوباسي.

هم ئې وینم هم ئې اورم ترې تېرېږم
چـــې پـــه څـنګ راتـه بژوه که بژ بژ (خوشحال)

ـــ **اونګېدل**:- اص.د بژوې بژ بژ کول ، د بژوې روړې ایستل یا اوباسل.

**بژه** :-(بْ+ژَهْ) [پ (ب ، خ) ص ، مذ ، مؤ] شلېدلې ،څیرې، بزه.

ـــ **کول** :-(اص) شلول ، څیرې کول ، بزه کول.

ـــ **کېدل** :-(اص) شلېدل ، څیرې کېدل ، بزه کېدل.

**بُـس** :-(بُ+ژْ+یـا بُ+کْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، صـو ، مـذ] د غـونډاري اواز ، د باد یا د بل تُند تېرېدونکي څیز اواز.

ـــ **کېدل** :-(اف) اص.د غونډاري اواز کېدل ، د باد یا د بل څهٔ تُند څیز اواز تر غوږ کېدل.

**بُـس برانـک** :-(بُ+ژْ+بُ+ژا+نَ+کْ یا بُ+کْ+بُ+کا+نَ+کْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بُږبرانکـان] د ماشـومانو د لوبـو پرپرکے ، بمبیرې ، برېرے.

**بُـربرے** :-(بُ+ژْ+بُ+ژَے یا بُ+کْ+بُ+کَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بُربرې] و ـــ بُربرانک.

**بُـردنګے** :-(بُ+ژْ+دَ+نْ+ګے) [اف : پ ، (قـاموس) اس ، مـذ ، وا] چرچنې ، چنچنه ، یوه مرغۍ.

**بـبړ ګوالے** :-(بُ+ژْ+رْ+ګْ+وا+لَے) [اف : پ (قـاموس) ص ، مـذ] ببـر والے ، ببرتوب ، په قهر کښې د حملې د تیارۍ حالت.

**بـبړکے** :-(بْ+ژْ+رْ+کے) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : ببړکي] په غصه کښې حملې ته تیار شوے ، ببر شوے.

**بُـړکې** :-(بُ +ړْ + کَې ) [ اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مذ ] و ــ بُړهار ـ

**بُـړل** :-(بُ + ړْ + لْ يا بُ + ګْ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] و ــــ بژل ـ

**بُـړلې** :-(بُ + ړْ + لَې يا بُ + ګْ + لَې ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : بُړلي ] (۱) ځيرې شوي ، شلولي (۲) حلال کړے ـ

**بُـــړندے** :-(بُ + ړَ + نْ + دَ ے يـا بُ + ګَ + نْ + دَ ے ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بُړندي ] و ـــ بُربرانک ـ

**بُـړنول** :-(بُ + ړْ + نَ + وْ + لْ يا بُ + ګْ + نَ + وْ + لْ ) [ پ ، مص ، مت ] يـرول ، ويرول ، ډرول ـ

**بُـړنولے** :-(بُ + ړْ + نَ + وْ + لَے يا بُ + ګْ + نَ + وْ + لَے ) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : بُړنولي ] يرولے ، ويرولے ، ډرولے ـ

**بُـــړنونګ** :-(بُ + ړْ + نَ + وَ + نْ + ګْ يـــا بُ + ګَ + نَ + وَ + نْ + ګْ ) [ اف ، پ (قاموس) حمص ] و ـــ بُړنونه ـ

**بُـــړنونه** :-(بُ + ړْ + نْ + وْ + نَـه يـا بُ + ګْ + نْ + وْ + نَـه ) [ پ ، حمـص ] يرونـه ، ويرونه ، ډرونه ـ

**بُـړنوونکے** :-(بُ + ړْ + نَ + وُوْ + نْ + کَے يا بُ + ګْ + نَ + وُوْ + نْ + کَے ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بُړنوُونکي ] يروُونکے ، ويروُونکے ، ډروُونکے ـ

**بُـــړنېدل** :-(بُ + ګْ + نــې + دْ ، لْ يــا بُ + ګْ + نــې + د + لْ ) [ پ ، مــص لا ] يرېدل ، ويرېدل ، ډرېدل ـ

**بُـــړنېدلے** :-(بُ + ړْ + نې + دْ + لَے يا بُ + ګْ + نې + دْ + لَے ) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : بُړنېدلي ] يرېدلے ، ويرېدلے ، ډرېدلے ـ

**بُـــړنېدنګ** :-(بُ + ړْ + نې + دَ + نْ + ګْ يا بُ + ګْ + نې + دَ + نْ + ګْ ) [ اف : پ ، (قاموس) حمص ] و ـــ بُړنېدنه ـ

**بُـــړنېدنه** :-(بُ + ړْ + نــې + دْ + نَـه يـا بُ + ګْ + نــې + دْ + نَـه ) [ پ ، حمـص ] يرېدنه ، ويرېدنه ، ډرېدنه ـ

**بُـړنېدونکے** :-(بُ + ړْ + نې + دُوْ + نْ + کَے يا بُ + ګْ + نې + دُوْ + نْ + کَے ) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : بُړنېدُونکي ] يرېدُونکے ، ويرېدونکے ، ډرېدُونکے ـ

**بُـړنېدۀ** :-(بُ + ړْ + نې + دَ + ۀ يا بُ + ګْ + نې + دَ + ۀ ) [ پ ، حمص ] و ــ بُړنېدنه ـ

**بُـړول** :-(بُ + ړْ + و + لْ يا بُ + ګْ + و + لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] ځۀ ځيـز داسې په زور ارتاوَل چې اواز ترې اُوزي ـ

**بُـړولے** :-(بُ + ړَ + وْ + لَے يا بُ ګَ + وْ + لَے ) [ اف : پ (قـاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : بُړولي ] ځۀ ځيز په زور ارتاؤ کړے شوے ـ

**بُـړوُونکے** :-(بُ + ړَ + وُوْ + نْ + کَے يابُ + ګَ + وُو + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بُړوُونکـي ] (۱) ځـۀ ځيـز پـه زور ارتـاوُونکے (۲) حلالوُونکے ، ذبح کوُونکے ـ

**بُـــړونګ** :-(بُ + ړْ + وَ + نْ + ګْ يـــا بُ + ګْ + وَ + نْ + ګْ ) [ اف : پ (قـــاموس) حمص ] و ـــ بُړونه ـ

**بُـــړونه** :-(بُ + ړَ + وْ + نَـه يـا بُ + ګَ + وْ + نَـه ) [ اف : پ (قـاموس) حمـص ] ځۀ ځيز په زور ارتاوونه ـ

**بُــــړ وُونکے** :-(بُ + ړَ + وُوْ + نْ + کَـے يـا بُ + ګَ + وُوْ + نْ + کَـے ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بُړوُونکـي ] ځـۀ ځيـز پـه زور ارتاوُونکے ـ

**بـړوه** :-(بْ + ړْ + وه يا بْ + ګْ + وه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بړوې ] و ـــ بژوه ـ

هم ئې اورم هم ئې وينم ترې تېرېږم
چــې پـه ځنـګ راتـه بړوے کـه بۀ بۀ (خوشحال)

**بــړوي** :-(بْ + ړْ + وي يا بْ + ګْ + وِيْ ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بړوې ] و ــــ بژوه ـ

**بُـــړه** :-(بُ + ړَه يـا بُ + ګَـه ) [ اف : پ (قـاموس) صف ] (۱) قتـل (۲) قربـاني ، حلاله (۳) ځيرې ويرې ، بڑه ـ

**ـــــ کول** :-(اف ) (۱) قتلول (۲) حلالـول ، قربـان کـول (۳) ځيـرې ويـرې کـول ـ بـڑه کول ، بيژه کول ـ

**ـــــ کېدل** :-(اف ) (۱) قتلېدل (۲) حلالېدل ، قرباني کېدل (۳) ځيرې ويرې کېدل ، بڑه کېدل ـ

**بُـړ هار** :-(بُ + ړْ + ها + رْ يا بُ + ګْ + ها + رْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مذ ] (۱) د تېز باد يـا سيلۍ اواز (۲) د ارتـاؤ کـړي يـا ويشـتلي کـاڼي اواز (۳) د تېزو اوبو د بهېدلو اواز ـ

**ـــــ کول** :-(اف ) د ځۀ ځيز د ارتاولو يا د باد الوتلو يا د اوبو بهېدلو اواز کول

**بــړے** :-(بْ + ړَے يا بْ + ګَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بړي ] د خورجين يا خورجۍ په شان کڅوړه ـ

**بَـړے** :-(بَ + ړَے يا بَ + ګَے ) [ اف : پ (قـاموس) ص ، مذ ، وا ، ج : بړي ] کُورنـدے ، د بـدن د ځـۀ حصـې د لـږ وخـت دپـاره شـل شـان کېـدل ، بدن مېږي مېږي کېدل ـ

**ـــــ اخيستل** :-( اف ) (۱) د بـدن د ځـۀ حصـې د لـږ وخـت دپـاره شـل کېـدل ، بدن مېږي مېږي کېدل ، کُورندي نيول (۲) يرېدل ، ډرېدل ، (۳) ځـۀ ځيز ته زړۀ کېدل ، ځۀ شي ته رغبت پېدا کېدل يـا مائـل کېـدل (۴) د بدن سخت خشکي کېدل ـ

**ـــــ نيول** :-(اف ) د بدن د ځۀ حصې د لږ وخت دپاره شل کېدل ، کُورندي کېدل ـ

**ـــــ ورته نيول** :-(اف ) (۱) چاته خُشکي کېدل (۲) ځۀ ځيز ته لېواله کېدل ـ

**بُـړېدل** :-(بُ + ړْ + ژي + دْ + لْ يا بُ + ګي + دْ + لْ ) [ مح : پ (قـاموس) مص لا ] (۱) د تېز باد چلېدل چې اواز ئې اورېدے شي ـ (۲) د ځۀ ځيز داسې په زور ارتاؤ کېدل چې اواز ئې تر غوږو شي (۳) ځۀ کار ډېر په قهر او په سختۍ شروع کېدل ـ

**بُـړېدلے** :-(بُ + ژي + دْ + لے يا بُ + ګي + دْ + لے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، اس ، مذ ، وا ، ج : بُړېدلي ] (۱) تېـز الـوتلے بـاد (۲) پـه زور ارتـاؤ کـړے ځيز (۳) هغه ځوک چې د ځۀ کار دپاره ډېر پـه تېـزۍ او تُنـدۍ روان وي ـ

**بُـړېدنه** :-(بُ + ژي + دْ + نَه يا بُ + ګي + دْ + نَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] په زور او تندۍ ارتاؤ کېدنه ـ

**بُـړېدُونکے** :-(بُ + ژي + دُو + نْ + کَے يا بُ + ګي + دُوْ + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : بُړېدُونکي ] په زور ارتاؤ کېدُونکے ـ

**بُـړېدۀ** :-(بُ + ژي + دۀ يـا بُ + ګي + دۀ ) [ اف : پ (قـاموس) حمـص ] (۱) پـه زور ارتاولې کېدنه (۲) د باد اواز راتلنه ـ

**بـس** :-(بَ + سْ ) [ انـګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بسـونه ، بسـينه ] لارۍ ، د سورلو ګاډے ـ

**بَـس** :-(بَ + سْ ) [ پ ، اس ، مذ ] (۱) پـوره ، کـافي (۲) ايلـه ، دومـره دومـره قـدرې (۳) وس ، اختيـار (۴) د ځۀ ځيز د بندولو يا نۀ کولو دپاره وېـنا (۵) خاموش ، غلے شه ـ

**ـــــ کول** :- پرېښول ، د کار نه لاس ايستل ، ختمول ـ

**ـــــ کېدل** :- پرېښولے کېدل ، د کار نه لاس ايستلے کېدل ، ختمېدل ـ

**بس بس** :-(بَ + سْ + بَ + سْ ) [ پ ، اس ، مذ ] (۱) کافي دے ، نـور ضـرورت نشته ، غلے شه ، بس که ، پرېږده ـ

**بس ده** :-(بَس + دَه ) [ پ ، کلمه ] پوره ده ، کافي ده ، اوشوه ، پرېږده پوره شوه ، غلے شه ، قلار شه ـ

**بس دے** :-(بَس + دَ ے ) [ پ ، کلمه ] و ــــ بس ده ـ

**بس شه** :-(بَس + شَه ) [ پ ، کلمه ] غلے شه ، قلار شه ، پرېږده

**بس کړه** :-(بَس + کْ + ړَه) [ پ ، کلمه ] و ــــ بس ده.

**بس که** :-(بَس + کَه) [ پ ، کلمه ] و ــــ بَس ده.

**بساط** :-(بِ + سَا + طْ) [ ع ، اس ، مذ ] (۱) طاقت ، همت ، وس ، حوصله ، در غريبي (۲) د شطرنج د لوبې کپړه يا تخته.

**بسبسه** :-(بَ + سْ + بَ + سَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بسبسې] د يو بوټي نوم چې په دارو کښې استعمالولے شي.

**بس بسيار** :-(بِ + سْ + بِ + سْ + يا + رْ) [ پ ، ص ، مذ] پرېوان ، دلې دلې ، بيس بسيار ، ډېر زيات.

**بسپن** :-(بْ + سْ + پْ + نْ) [ اف : (قاموس) اس، مذ] ټولنه ، ټولونه ګرده ، چنده، د مصيبت زپلو دپاره امدادي چنده .

**ــــ ټولول** :-(اف) ټولنه ، ټولونه يا ګرده کول ، چنده غونډول

**ــــ کول** :-(اف) امدادي چنده کول.

**ــــ ورکول** :-(اف) امدادي چنده ورکول.

**بسپنه** :-(بْ + سْ + پْ + نه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: بسپنې ] چنده.

**بسپه** :-(بَ + سْ + پَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ] ذره ، لږ څيز ، پوټے پوټسکے ، بسمه.

**بست** :-(بَ +سْ+تْ) [ پ (سو) اس،مذ ،وا ، ج : بستونه] اسباب، بستره.

**بستان** :-(بُ + سْ + تا + نْ) [ ع ، فا : بوستان ، اس ، مذ ، وا ] باغ.

که په دا قامت درود په بستان وکړې
فوارې غوندې به سر وخجلت اب کړه (کاظم خان)

**بستر** :-(بِ +سْ + تَ + رْ) [ فا ، اس ، مذ ،وا ، ج : بسترې] بستره ، بشتره ، اسباب.

ما له درده د غنچې په شان اوده کړه
وپهلو تـه مې بستر د خارستان را (کاظم خان)

**بستربند** :-(بستر+ بَ + نْ + دْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بستربندونه] د بسترې ترلو څيز ، دا د پخې او مضبوطې کپړې نه جوړ وي او ترلو دپاره د څرمنې تسمې پکښې لګېدلې وي .

**بستره**:-(بِ +سْ + تَ + رَه) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بسترې] و ـ بستر.

**بستره غوړول** :- اص ـ لُغ ـ بستره ويړول ، اص : پخې ډډې اچول ، پوخ کښېناستل

**بستره ګول کول** :- مح ـ د چا د يو ځاے نه ويستل ، شړل ، د نوکرۍ نه اوباسل.

**بستره ګول کېدل** :- مح ـ د چا د يو ځاے نه ويستل کېدل ، شړلے کېدل ، د نوکرۍ نه ويستلے کېدل.

**بستوب** :-(بَ + سْ + تو + بْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ] بستيا ، پوره توب ، پوره والے ، کفايت ، بسنه ، صبر ، بسوالے.

**بسته** :-(بَ + سْ + تـه) [ اف : پ (قاموس) امر ، مؤ] (۱) بس ، مه کوه (۲) پرېکړې (۳) کافي ، پوره .

**بسته** :-(بَ + سْ + تَه) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بستې ] د کتابونو ترلو او سنبالولو کپړه يا کڅوړه (۲) د دروازې يا ور هغه تخته چې پورته ښکته کولے شي (۳) اف : د درياب يا ويلې په غاړه اوچته مزکه چې د کروندې جوګه وي.

**بسته الف** :-(بسته+ اُ + لِ + فْ) [ پ ، اص] د پوليس په تانه کښې د بدمعاشانو د فهرست کتاب.

**بسته بې** :-(بسته + بې) [ پ ، اص] د پوليس په تانه کښې د بدمعاشانو د فهرست کتاب.

**بستيا** :-(بَ + سْ + تْ + يا) [ پ، اس ، مؤ] و ــــ بستوب.

**بسره** :-(بَ+سْ+رَه) [ اف : پ (قاموس) اس ،مؤ، وا ، ج : بسرې] يوه ښکاري مرغۍ.

**بسکټ** :-(بِ +سْ + کَ + ټْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بسکټونه يا بسکټينه ] د ميدې نه جوړ خواږهٔ يا نمکين ککوړي چې چائيو سره خوړلے شي.

**بسکر** :-(بَ + سْ + کَ + رْ) [ پ (مر+ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج : بسکرې] و ــــ اشر

**بسکر** :-(بَ + سْ + کَ + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] اُجرتي قاتل هغه څوک چې د پيسو په عوض بغېر د خپلې دښمنۍ نه د بل چا دپاره قتل کوي.

**بسکره** :-(بَ + سْ + کْ + رَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بسکرې ] و ــ اشر .

**بُسلمون** :-(بُ + سَ + لْ + مو + نْ) [ پ (عا) (ب ، خ) اس، مذ ، وا ، ج: بسلمونون (مؤ ، وا: بُسلمونه ، ج : بسلمونې) ] مسلمان.

**بسلموني** :-(بُ +سَ +لْ +مو+نِيْ) [ پ (عا، ب ،خ) اس ، مؤ ] مسلماني

**بسمل** :-(بِ + سْ + مِ + لْ) [ فا ، ص ، مذ] (۱) هغه ښکار چې د نذرانې په ډول منلے شوے وي ـ د مناتې ښکار (۲) ژوبل، زخمي ، مجازاً عاشق.

**ــــ کول**:-(اص) (۱) زخمي کول (۲) دردَوُل،د هجر په غم کښې سوځول.

**ــــ کېدل** :-(اص) (۱) زخمي کېدل (۲) دردېدل ، د هجر په غم کښې سوځېدل.

**بسم الله** :-(بِ + سْ + مِ + لْ + لاه) [ ع ، کلمه) لُغ : شروع کوم د خداے تعالیٰ په نوم (۱) شروع کوه ، لاس لګوه (۲) ډېره ښه.

**ــــ کول** :-(اص) شروع کول ، په څهٔ کار لاس پورې کول.

**بسمه** :-(بَ +سْ + مَه) [ پ (ظفر) اس، مؤ ، وا ، ج : بسمې] (۱) وسمه خضاب ، د وېښتو تورولو دارو (۲) ذره ، ټکړه ، پُوټسکے ،توخره ،کُرم.

**بمې بسمې** :-(بَ + سْ + مې + بَ + سْ + مې) [ پ ، ص] ذرې ذرې ټکړې ټکړې، پُوټے پُوټے.

**ــــ کول**:-(اص) ذرې ذرې کول ، ټکړې ټکړې کول ، پوټے پوټے کول

**بسنت** :-(بَ + سَ + نْ + تْ) [اس، اص ، مذ، وا] (۱) سپرلے ، بهار ، (۲) د هندوانو يوه مېله (۳) يو راګ ، بهار .

بر بر راشـــه د بهـــار تـــازه بسنته
تا نشاط واوړه هر دشت وهر چمن ته (کاظم خان)

**بسنت پنچمي** :-(بَسنت + پَ + نْ + چَ + مِيْ) [ ه ، اس ، معر ، مؤ] د هندوانو يوه مېله.

**بسنتۍ**:-(بَ+سَ+نْ+تۍ) [ پ (ګن) اس ، مؤ ] يو قسم پانزېب يا پايلے.

**بسندے** :-(بَ + سَ + نْ + دَے) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ،وا ، ج: بسندي] صابر ، صبرناک ، بې لالچه.

**بسنډول** :-(بَ + سَ + نْ + ډو + لْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] حيله ، بهانه.

**ــــ کول** :-(اف) اص-حيله کول ، بهانه کول.

**بسنه** :-(بَ + سْ + نه) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ ] و ـ بستوب.

**ــــ کېدل**:-(اف) اص-پوره کېدل ، صبرېدل.

**بسنې** :-(بَ + سْ + نې) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] قانع ، صابر ، صبرناک ، بې لالچه.

**بسو** :-(بَ + سو) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ] صابره ښځه ، بې لالچه زنانه، هغه ښځه چې د کور په کار پوهه وي ـ د زده کړې او د

علم په ډول هم استعمالېږي.بسه.

**بسوالے** :-(بَ+سْ+وا+لَے) [پ، اس، مذ] و ــــ بستوب.

**بسه** :-(بَ+سه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] و ــــ بسو.

**بسی** :-(بْ+س ی) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] شاړه، ویجاړه مزکه چې فصل نهٔ کوي.

**بسیا** :-(بَ+سْ+یا) [پ، ص، مذ] (۱) اباد، استوګن، دېره، مېشت

په اور سوے ښهر وران وي څهٔ حکمت دے
سوے سته د مخ په اور یمه بسیا زهٔ (رحمان)

(۲) کافي، پوره، بس بسیار (۳) صابر، صبر ناک، بې لالچه (۴) مشغول، اخته، لګیا.

ــــ **کول** :-(اص) مېشتول، اباده ول، دېره کول.

غرهٔ نفس لرې ایستم له خاکسارۍ
ما په خپل وطن بسیار کړې زما ربه (حمید)

ــــ **کېدل** :-(اص) میشتېدل، آبادېدل، ډېره کېدل.

**بسیائي** :-(بَ+سْ+یا+ئيْ) [پ (ګن) اس، مؤ] ابادي.

**بسیار** :-(بِ+سْ+یا+رْ) [فا، ص، مذ] کافي، ډېر، پوره، زیات.

یو فساد به ئې بیان له رحمان نهٔ شي
فسادونه دي بسیار د دې دنیا (رحمان)

**بسیارې** :-(بِ+سْ+یا+رې) [پ تر، ص، مؤ] ډېرې، زیاتې، کافي.

جنازې مې ولېدې ډېرې بسیارې (مولانه عبدالسلام)

**بسېدهٔ** :-(بَ+سې+دهٔ) [پ، حمص] بس کېدهٔ، بس کېدل، ختمېدنه.

عشق وصبر سره لرې دي ناصحه
کله اور کاندي له سولو بسیدهٔ (حمید)

**بسیر** :-(بَ+سيْ+رْ) [پ، اس، مذ] چارګل، خلے، پیپ.

**بش** :-(بَ+شْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: بشونه] بیش، شهتیر، تیر نشتر.

**بُش** :-(بُ+شْ) [انګ، اس، مذ، وا، ج: بُشونه] په انجن کښې د پیټلو یا تانبې نه جوړه هغه پُرزه چې په هغې کښې د ننه سلنډر حرکت کوي.

**بَشارت** :-(بَ+شَا+رَ+تْ) [ع، اس، مذ، وا، ج: بشارتونه] زېرے، خوشخبري.

**بشاړې** :-(بَ+شا+ړې) [پ، اس، مؤ، ج] پشاړې، عبث خبرې ملنډې، ټوقې.

ــــ **کول** :-(اص) پشاړې کول، عبث خبرې کول، ملنډې کول، ټوقې کول.

ــــ **کېدل** :-(اص) پشاړې کېدل، عبث خبرې کېدل، ملنډې کېدل، ټوقې کېدل.

**بشپ** :-(بِ+شَ+پْ) [انګ، اس، مذ، وا، ج: بشپان] لوے پادري، د عیسایانو لوے مذهبي مشر.

**بشپړ** :-(بْ+شْ+پْ+ړْ) [اف: پ (قاموس) ص، مذ (مؤ، وا: بشپړه، ج: بشپړې)] پوره، کامل، زیات، کافي.

ــــ **کول** :-(اف) پوره کول، زیات کول، کافي کول.

ــــ **کېدل** :-(اف) پوره کېدل، زیات کېدل، کافي کېدل.

**بشپړ توب** :-(بْ+شْ+پْ+ړْ+تو+بْ) [اف: پ (قاموس) اس] پوره والے، زیاتوالے، کافي والے، تکمیل ته رسېدل، بشپړتیا.

**بشپړتیا** :-(بْ+شْ+پْ+ړ+ت+یا) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا] و ــــ بشپړ توب

**بشپړک** :-(بْ+شْ+پُ+ړَ+کْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، (مؤ، وا: بشپړکه، ج: بشپړکې)] هغه ماشوم چې په وړوکوالي کښې پخې خبرې کوي.

ــــ **کېدل** :-(اف) د ماشوم پخې خبرې کول.

**بُشپړکې خبرې کول** :-(اف) دَ ماشوم پخې خبرې کول.

**بشپړ والے** :-(بِ+شْ+پِ+ړَ+وا+لَے) [اف: پ (قاموس) اس] پوره والے، کامل توب.

**بشپړول** :-(بْ+شْ+پْ+رَ+وْ+لْ) [اف: پ (قاموس) مص مت] پوره کول، کاملول، سرته رسول.

**بشپړونه** :-(بْ+شْ+پْ+رَ+وْ+نَه) [اف: پ (قاموس) حمص] پوره کونه، سرته رسونه، مکملونه.

**بشپړوُونکے** :-(بْ+شْ+پْ+رَ+وُوْ+نْ+کَے) [اف: پ (قاموس) اس، فا ع، مذ، وا] ج: بشپړوُونکي] پوره کوُونکے، سرته رسوُونکے، مکملوُونکے.

**بشپړه بلا** :-(بْ+شْ+پْ+ړه+بَ+لا) [اف: پ (قاموس) اس، ص، مؤ، وا، ج: بشپړې بلاوې] لویه بلا، لوے آفت، ستر مصیبت

**بشپړېدل** :-(بْ+شْ+پْ+ړې+دْ+لْ) [اف: پ (قاموس) مص لا] پوره کېدل، سرته رسېدل، بشپړ کېدل، مکملېدل.

**بشپړېدنه** :-(بْ+شْ+پْ+ړې+دْ+نَه) [اف: پ (قاموس) حمص] پوره کېدنه، سرته رسېدنه، مکملېدنه، بشپړېدنهٔ.

**بشپړېدونکے** :-(بْ+شْ+پْ+رې+دُو+نْ+کَے) [اف: پ (قاموس) مف، اس، مذ، وا، ج: بشپړېدونکي] پوره کېدونکے، سرته رسېدونکے، مکمل کېدونکے.

**بشپړېدهٔ** :-(بْ+شْ+پْ+ړې+دهٔ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ــــ بشپړېدنه.

**بشر** :-(بَ+شَ+رْ) [ع، اس، مذ، وا، ج: بشرونه] (۱) بنیادم، انسان

پس له دې په ئې په نوم د ملک بولم
هم په دا چې نشته دا رنګ بل بشر (رحمان)

(۲) تن، بدن

**بشرکې** :-(بَ+شْ+رْ+کې) [اف: پ (قاموس) اس، تصغیر] وړوکے، بنیادم، د ورکوټي بدن خاوند.

**بشره** :-(بَ+شْ+رَه) [پ، ع: بشوه، اس، مؤ، وا، ج: بشرې] څېره، صورت، مخ، موشاده.

عاشقي توره بلا نه وه کېمیا وه
چې زما خاکي بشره شوه زرې زېړه (حمید)

**بشکال** :-(بْ+شْ+کا+لْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: بشکالُونه] (۱) د پشکال میاشت، ساوڼ (۲) د بارانونو موسم، بښکال.

یا شببې د بشکال وي زورورې (عبدالعظیم)

**بشکالے** :-(بْ+شْ+کا+لَے) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: بشکالي] وُچوالبهٔ.

**بشکالي** :-(بْ+شْ+کا+لِيْ) [اف: پ (قاموس) اس، ص، مؤ] ابادي، آباد کال، د بارانونو کال.

**بشکله** :-(بَ+شْ+کَ+ له) [پ (مر) ص] بل شان، بل قسم، بل رنګ.

**بشکه** :-(بَ+شْ+کَه) [پ، اس، مؤ] یو قسم ساګ، سبزي، شینکے

بشکه شړشم د کلي جونه په جولو کښې راوړي
څوک ئې په غېږ څوک ئې پنډونه لوپټو کښې راوړي (رسا)

**بشنج** :-(بَ+شَ+نْ+جْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: بشنجونه] نوم ناموس، عزت، شهرت، لوئي.

**بشه** :-(بْ+شَه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: بشې] مرږه، باټېره.

**بشیر** :-(بَ+شيْ+رْ) [ع، اس، فا، ع، مذ، وا] (۱) زېرے کوُونکے، خوشخبري اوروُونکے (۲) د مسلمانانو یو نوم.

**بشير** :-(بَ+شيْ+رْ) [اف: پ (قاموس) اس، ص، مذ، (مؤ، وا: بشيره، ج: بشيرې) ] شوکور، شبکور.

**بښتګه** :-(بَ+ښْ+تْ+ګه يا بَ+خْ+تْ+ګه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ ] اوچې ځانګې چې د کوټګۍ دپاسه اچولے شي.

**بښکال** :-(بْ+ښْ+کا+لْ يا بْ+خْ+کا+لْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا] و ــــ بشکال.

**بښکلي** :-(بْ+ښْ+کْ+لِيْ+يا بْ+خْ+کْ+لِيْ) [اف: پ (قاموس) ص] (۱) آبادي، د آبادۍ کال، بشکالي (۲) ارام، استراحت، امن.

**بښل** :-(بْ+ښْ+لْ يا بْ+خْ+لْ) [پ، مص مت] بخښل

**بښلے** :-(بْ+خْ+لَے يا بْ+ښْ+لَے) [اف: پ (قاموس) صف، مذ، وا، ج: بښلي] بخښلے.

**بښکوله** :-(بَ+ښْ+کو+له يا بَ+خْ+کو+له) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: بښکولې] بده واقعه، غمجنه پېښه.

**بښــــکلوي** :-(بْ+ښْ+کَ+لْ+ويْ يــــا بْ+خْ+کَ+لْ+وِيْ) [اف: پ (قاموس) اس، ص، مؤ] ايمنوالے، ارام، سکون.

**بښنه** :-(بْ+خْ+نه) [اف: پ (قاموس) حمص] بخښنه.

ــــ **کول** :-(اف) بخښنه کول.

**بښونکے** :-(بَ+ښُو+نْ+کَے) [اف: پ (قاموس) اس، فا ع، مذ، وا، ج: بښونکي] بخښونکے.

**بصــــارت** :-(بَ+صــــا+رَ+تْ) [ع، اس، مــذ، وا] (۱) نظــر، ديــد، (۲) پېژندګلي

ترمرات مې ګوهر صاف دے که انصاف شي
ولــې نشــــته بصــــارت د جــوهــــريانو (کاظم خان)

**بصر** :-(بَ+صَ+رْ) [ع، اس، مذ، وا] سترګې

چرې اوښې مې لاخو نۀ کا وېربېرم
په ژړا کښې ځکه دواړه بصر نيسم (عليخان)

**بصره** :-(بَ+صْ+رَ) [ع، اس، معر، مؤ] د عراق يو مشهور ښهر د کوم ځاے چې کجورې ډېرې مشهورې دي.

**بصير** :-(بَ+صِيْ+رْ) [ع، اس، ص، مذ، وا] بينا، ليدونکے چې نظر ئې لګي

خداے درکړي شنوا غوږ دي بينا سترګې
دانســــته تر کـــمو لوېږې بصير مه شې (حميد)

(۲) د خداے پاک يو صفاتي نوم.

**بطحا** :-(بَ+طْ+حا) [ع، اس، مذ] مکه، معظمه.

**بطخــه** :-(بَ+طَ+خَه) [پ، اس، مؤ، وا، ج: بطخې] بطه، بطکه، د اوبــو مرغۍ، مُرغابۍ يا مرغاوۍ.

**بطکه** :-(بَ+طَ+کَه) [پ (سو) اس، مؤ، وا، ج: بطکې] غټه بطه

**بطــه** :-(بَ+طَه) [پ، ع: بط، اس، مؤ، وا، ج: بطې] بطکه، بطخه، د اوبــو يوه مرغۍ، مُرغابۍ يا مرغابۍ.

**بطليمــوس** :-(بَ+طْ+لــيْ+مُــوْ+سْ) [يُــو+اس، مــذ، وا] دے د اسکندريه اوســېدونکے ؤ. د جالينوس شاګرد وو. د نجـوم او هندسې لوے ماهر وو. په اول ځل ئې د نجوم د صحت د پاره يوه رسد خانه جوړه کړه او د مزکې نقشه ئې تياره کړه.

**بعد** :-(بَ+عْ+دْ) [ع، اس] وروستو، پسې، ورپسې.

**بعض** :-(بَ+ع+ضْ) [ع، اس] ځينې، څوک.

**بعيد** :-(بَ+عِيْ+دْ) [ع، ص] لرې، بيارته، ورايه.

ربــه! روزې مې د وصال عيد کړې
شک ووسواس مې د زړۀ بعيد کړې (حافظ الپوري)

**بغ** :-(بَ+غْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: بغونه يا بغون] باد خورک، باد خور، يو مارغۀ چې شاه غاړه او لکۍ ئې شنۀ وي او سينه ئې سپينه. نوکونه او پښې ئې لوئې وي. مهيان يا کبان خوري.

**بُغ** :-(بُ+غْ) [اف: پ (قاموس) اس، صو، مذ] د ژړا اواز، بغا.

**بغ** :-(بُ+غْ) [پ، اس ص، مذ (مؤ، وا: بُغه، ج: بُغې] تريو تندے، هغه څوک چې په غصه کښې ناست وي. غصه ناک.

**بغا** :-(بَ+غا) [پ (ګن) اس، صو، مؤ] د ژړا اواز، بُغ.

**بُغا** :-(بُ+غا) [پ (سو) اس ص، مذ، وا، ج: بُغيان] هغه څوک چې غاړه ئې ناسته وي. بُوژغاړے، بُغے.

**بغا** :-(بَ+غا) [پ، اس، صو] (۱) ناستې مرۍ اواز (۲) اف. هغه اواز چې په زور راکښلے شي.

**بغارګ** :-(بْ+غا+رْ+ګ) [پ، ص، مذ (مؤ، وا، ک بغارګه، ج: بغارګې)] (۱) غبرګ، بغرګ، دو تهيز، دوه تو (۲) جوړه، ورسره، څنګ په څنګ (۳) کوږ، تيټ.

**بُغاره** :-(بُ+غا+رَه) [پ، اس صو، مؤ، وا، ج: بغارې] چغه، کريکه، کريژه.

**بُغاري** :-(بُ+غا+رِي) [پ، اس، صو، ج] چغې، کريژې.

ــــ **ايستل** :- اص. چغې کول، کريژې وهلې، بغارې کول، بغارې وهل، بغارې ويستل.

ــــ **کول** :- اص. و ــــ بغارې ايستل.

ــــ **وهل** :- اص، و ــــ بغارې ايستل.

ــــ **ويستل** :- اص،. و ــــ بغارې ايستل.

**په بغارو کښېوتل** :- اص. په چغو، کريکو يا کريژو سر کېدل، ژړا انګولا جوړول

**بغاند** :-(بَ+غا+نْ+دْ) [پ (ګن) اس، ص، مذ، وا، (مؤ، وا: بغانده، ج: بغاندې)] هغه ماشُوم چې ډېره ژړا کوي.

**بغــاوت** :-(بَ+غــا+وَ+تْ) [ع، اس، مــذ، وا، ج: بغاوتونــه] سرکشــي، نافرمـاني، د حکم منلـو نـه انکـار، اړے ګړے، ياغيتوب، د قـانون مخالفت.

ــــ **کول** :- اص، چغې کول، سرکشي کول، نافرماني کول، د حکم منلو نه انکار کول، اړے ګړے کول، ياغي کېدل.

ــــ **کېدل** :- اص. باغي کېدل، اړے ګړے کېدل، د حکم نافرماني کېدل، د قانون مخالفت کېدل.

**بغبغائي** :-(بَ+غ+بَ+غائي) [پ (ب، خ) اس، صو، مذ، وا، ج: بغبغي] (۱) هارن، د لارۍ يا موټر د خبرداري اواز (۲) ژړا، بغا.

**بغبغو** :-(بَ+غْ+بَ+غُوْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: بغبغوګان] يو مارغۀ چې په اوبو کښې يا جبو کښې ماهيان نيسي.

**بغبغے** :-(بُ+غْ+بُ+غَے) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: بُغبغي] (۱) هارن، بغبغائي (۲) ججُوره.

**بغداد** :-(بَ+غ+دا+دْ) [اس، معر، مذ] په عراق کښې يو مشهور ښهر، د عراق د تخت ځاے، ددې ځاے اسلامي يونيورسټي ډېره مشهوره ده.

**بغداده** :-(بَ+غْ+دا+دَه) [اس، معر، مؤ] د مردان سره نژدې يو کلے.

**بغــدادي** :-(بَ+غْ+دا+دِيْ) [اف: پ (قـاموس) اس، ص] درې کُنجـه ګنـډلې برستن.

**بغدادي** :-(بَ+غْ+دا+دِيْ) [اس، ص] د بغداد سره تعلق لرونکے.

**بغــدادي قاعــده** :-(بَغـدادي+قـا+عِ+دَه) [اس، مـر، مـؤ، وا، ج: بغـدادي قاعدې] د عربۍ قاعده، د عربۍ ابتدائي درسي قاعده.

**بغــدادي کــوتره** :-(بغــدادي+کَــو+تَ+رَه) [اس، ص، مــؤ، وا، ج:

بغدادي كوترې ] شنه ځنګلي كوتره چې د نورو كوترو په مقابله كښې لږه غټه وي.

**بُغـدر** :-(بُ + غْ + دَ + رْ) [ اف : پ (قـاموس) ه : مُكَـدر ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بُغدرُونه ] د پهلوانانو د ورزش د لرګي ډبلې.

**بغـرګ** :-(بْ + غَ + رْ + ګْ) [ پ ، ص ، مـذ (مؤ ، وا : بغرګـه ، ج : بغرګـې ] و ـــ بغارګ

**بغرګوالـے** :-(بْ + غَ + رْ + ګَ + وا + لَـے) [ پ،ص،مـذ ] (۱) غبرګــوالے ، (۲) دوباره، دوه ځلې (۳) کرېدنه.

**بغرګول** :-(بْ + غَ + رْ + ګَ + وْ + لْ) [ پ ، مص ، مت ] (۱) غبرګـول ، دوه تهـه كول (۲) دوباره كول (۳) كرول.

**بغرګولے** :-(بْ+غَ+رْ+ګَ+وْ+لَے) [اف : پ(قاموس) اس ، مذ] غبرګونے ، جوړه.

**بغرګونـه** :-(بْ + غْ + رْ + ګَ + وْ + نَـه) [ پ ، حمـص ] (۱) غبرګونـه ، دوه تهـه كونه (۲) تكرارونه ، دوباره كونه ، جوړه كونه.

**بغرګونـے** :-(بْ + غَ + رْ + ګُـوْ + نَـے) [ پ ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : بغرګـوني ] غبر ګونے ، جوړه پيدا شوے.

**بغرګوونکے** :-(بْ +غَ + رْ+ ګَ + وُوْ + نْ + كَے) [پ، اس، فـاع ، مذ ، وا ، ج : بغرګــــوُونكي ] (۱) غبــــر ګـــــوُونكے ، دو تهـــــه كـــــوونكے (۲) تكراروُونكے ، خبره اړوُونكے

**بغرګه** :-(بْ + غَ + + رْ + ګَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بغرګې ] (۱) د دوؤ غرونو په مېنځ كښې لار (۲) جوړه پيدا شوې جينۍ.

**بغرګېدل** :-(بْ + غَ + رْ + ګې + دْ + لْ) [ ب ، مص لا] (۱) غبـر ګېـدل دو تهـه كېدل (۲) تكرارېدل ، خبره اړېدل.

**بغرګېدنـه** :-(بْ + غَ + رْ + ګې + دْ + نَـه) [ پ ، حمص ] (۱) غبرګېدنـه دوه تهـه كېدنه ، (۲) تكرارېدنه ، خبره اړېدنه.

**بغګېدونكے** :-(بْ + غَ + رغ + ګې + دُوْ + نْ + كَے) [ پ ، صف ، مذ ، وا ، ج : بغرګېــدُونكي ] (۱) غبـــر ګېـــدُونكے ، دو تهـــه كېـــدُونكے ، (۲) تكرارېدُونكے ، اړېدُونكے.

**بغره** :-(بْ + غْ + رهٔ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بغرې ] د سوې غـار يا ځاے ، د سوې كور.

**بغـره** :-(بُ + غْ + رَه) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بُغـرې ] بُرقعـه ، بورقه

**بغره** :-(بَ + غَ + رْ + رَه) [ پ (ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج : بغرې ] لنګرۍ بټېل ، بغرۍ ، تنګرۍ.

**بغـرۍ** :-(بَ + غْ + رَ + ئ) [ پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بغريـانې ] (۱) لنګـرۍ ، بغره ، د شولو ، بټو يا د دارو ټكولو يا مېده كولو لوښے ، (۲) بد كاره ښځه

**ـــ كول** :- اص.د كنځلو په ډول استعمالېږي.شلول ، معامله كول، بد كاري كول.

**بغـرې** :-(بَ + غْ + رې) [ پ ، ص ] د سـترګو صفت ، ژورې ورې سـترګې ، په كوغالو كښې ننوتې سترګې.

**بغسه** :-(بَ + غْ + سه) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بغسې] غسـه ، قبر كن ، ګور كشے ، قبر كښ ، د لومبړې يو قسم چې مړي را اوباسي.

**بغـض** :-(بُ+غْ+ضْ) [ ع ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بُغضونه] كينـه ، حسـد ، نفرت ، كركه.

**ــــ ساتل** :- اص ، بغض لرل ، كينه كول ،حسد كول.

**ــــ لرل** :- اص ، و ــــ بغض ساتل.

**بُغضي** :-(بُ + غْ+ضيْ) [ پ ، تر ، اس ، ص ، مذ ، مؤ ] كينـه ، كښـكے ، كينـه ناک ، حسد كوُونكے.

**بُغكے** :-(بُ + غْ + كَے) [ اف ، پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ] د ژړا اواز

**بغـل** :-(بَ + غَ + لْ) [ فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بغلونـه ] (۱) تـرخ (۲) غـاړه ،كناره ، طرف

**ـــ اخستل** :- اص ، ترخونه كلول ، د ترخونو ويښتهٔ پاكول.

**ـــ خالي كول** :- اف) اص.ځان غړول ، يوې ډډې ته كېدل ، بغل كښل.

**ـــ كښل** :- اف) اص.و ـــ بغل خالي كول.

**بغل كښي كول** :-(اف) اص ، سينه وركول ، غـاړه غټـې كېـدل ، د سـتړي مشـي په ډول سينه په سينه ملاوېدل ، معانقه كول.

**بغـل** :-(بَ + غْ + لْ) [ پ (سو) اس ، صـو ] د اوښ د بړولـو او تـالو وهلـو دپـاره ماشومان دا اواز ورته كوي.

**بغلـي** :-(بَ + غْ + لِـيْ) [ پ ، ص ج يـو ځـاے ، ګـډ ، غـاړه غټـې ، څنـګ پـه څنګ.

په ژړا ژړا مې تو ر د سترګو سپين شول

د دې رود پــــه كـــناره شو بغلي دواړه (كاظم خان)

**بُغمه** :-(بُ + غْ + مَـه) [ پ (شـن) اس ، مـؤ ] بوغمـه ، يـو مـرض چـې مـرۍ پـه كښې پړسېدلې وي.

**بغن** :-(بَ + غُ + نْ) [ اس ، مذ ، وا ، ج ] كوكۍ ، كوګۍ ، اتګي ، مخ ، بغور ، بارخو

**بغنـے** :-(بْ + غْ + نَـے) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] يـو قسـم پيـور بـوټے چـې شنې پانې او زېړ ګلونه لري.

**بغوټ** :-(بَ + غُوْ + ټْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بغوټې، بغوټونه ] د غاړې غوټې ، ټانسلز.

**بغور** :-(بَ + غْ + وَ + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بغورونه ] و ـــ بغن.

**بغول** :-(بَ + غَ + وْ + لْ) پ (ب ، خ)مص مت ] (۱) ژړول (۲) څهٔ ځيز ارتـاوول ، (۳) هارن كول.

**بُغول** :-(بُ + غْ + وْ + لْ) [ پ ، مص ، مت ] ژړول ، په چغو كول.

**بغولے** :-(بَ + غَ + وْ + لَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : بغـولي ] (۱) ژړولے ، (۲) په زور ارتاؤ كړے (۳) هارن كړے شوے.

**بُغولے** :-(بُ+غَ+وْ+لَے) [اف : پ(قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : بُغولي ] ژړولے.

**بُغونګ** :-(بُ + غْ + وَ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] بغونه.

**بغونه** :-(بَ + غَ + وْ + نَه) [ پ (ب ، خ) حمص] (۱) ژړونـه (۲) په زور ارتاووونـه ، (۳) هارن كونه.

**بُغونه** :-(بُ + غْ + وَ + نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص ] ژړونه .

**بغوُونكے** :- (بَ + غَ + وُوْ + نْ + كَـے) [ پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بغـوُونكي (۱) ژړوُونكے (۲) په زور ارتاوُونكے (۳) هارن كوُونكے.

**بُغوُونـے** :-(بُ + غَ + وُوْ + نَـے) [ اف : پ (قـاموس) اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بُغووني ] هارن كوُونكے.

**بُغهار** :-(بُ + غْ + ها + رْ) [ اف: پ (قـاموس) اس ، ص ، مـذ ] (۱) فريـاد (۲) د ماشومانو يا د ګډو بزو پر له پسې اواز.

**بُغي** :-(بُ + غي) [ پ (سو) اس ص ، مذ ، وا ، ج : بغيان ] و ـ بُغا.

**بُغۍ** :-(بُ + غۍ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بُغيـانې ] بـوغۍ ، ښكر ، ناقوس ، بګل ، بيین.

**بغي بغو** :-(بَ + غيْ + بَ + غو) [ پ (ب ، خ) اس ، ص ، مؤ ] ژړا انګولا ، شور ، ژوژ ، ژړا فرياد .

**بغېدل** :-(بَ + غـې + دْ + لْ) [ پ ، مـص لا ] (۱) ژړېـدل (۲) ارتاوېـدل (۳) هـارن وهلے كېدل.

**بُغېدل** :-(بُ + غـې + دْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص لا ] ژړېدل ، فرياد كول

**بغېدلې** :-(بَ + غـېِ + دْ + لَـې ) [ اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج : بغېدلي ] ژړېدلې.

**بغېدنــه** :-(بَ + غـېِ + دْ + نَـه ) [ پ ، حمـص ] (۱) ژړېدنـه (۲) ارتاوېدنـه (۳) هارن کېدنه.

**بُغېدنه** :-(بُ + غې + دْ + نَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] ژړېدنه ، فریاد کونه.

**بغېدونکې** :-(بَ + غې + دُوْ + نْ + کَې ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بُغېدونکي ] (۱) ژړېدونکې ، بغېدونې (۲) ارتاوېدونکې ۳) هارون کېدونکې.

**بُغېدُونکې** :-(بُ + غې + دُوْ + نْ + کَې ) [ اف ، پ (قاموس) اس، فا ع، مذ ، وا، ج : بُغېدونکي ] ژړېدونکي ، فریاد کوُونکې.

**بغېدونې** :-(بَ + غې + دُوْ + نَې ) [ پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بغېـدوني ] و ـــ بغېدُونکې.

**بُغېدونې** :-(بُ + غـې + دُوْ + نَې ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بغېدُوني ] و ـــ بُغېدونکې.

**بغېر** :-(بَ + غې + رْ ) [ فا ، اس ] سهوا ، بې له دې.

**بغېـړ** :-(بْ + غـې + ړْ ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ (مـؤ ، وا : بغېـړه ج : بغېړې) بدګمان ، ناویسا ، بدظن.

**بغېړنه** :-(بْ + غې + ړْ + نَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] بدګماني ، ناویسائي ، بد ظني.

**بفا** :-(بَ + فَا ) [ پ ، عا (ګن) اس ، مؤ ] وفا.

**بفرستېټ** :-(بَ + فْ + فَ + رْ + سْ + تې + ټْ ) [ انګ ، اس ، ص ، مذ ] د دوو ملکونو مېنځنۍ ازاده علاقه ،د شر شدت علاقه.

**بفه** :-(بَ + فْ + فَه ) [ اس ، معر ، مؤ ] په هزاره ضلع کښې د پکلۍ د علاقې د یو کلي نوم.

**بقا** :-(بَ + قا ) [ ع ، اس ، مؤ ] همېشګي ، پائښت ، دوام ، پوخوالې ، ژوند.

**ـــ لرل** :- اص ، دوام لري.همېشوالې لرل ، پوخوالې لرل.

**بقـال** :-(بَ + قـا + لْ ) [ ع ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بقـالان ] لُـغ : سبزي ، ترکـاري خرڅوُونکې ، اص : بنیا ، دوکاندار.

**بقایـا** :-(بَ + قـا + یـا ) [ ع ، اس ، مـؤ ، و : ج : بقـائې ] پـاتې ، بـاقي ، د قـرض پاتې شوې حصه.

**بـق بـق** :-(بَ + قْ + بَ + قْ ) [ پ ، اس ، مـر ، مـذ ] (۱) د قـې کولـو اواز (۲) د صـراحۍ یـا کوزې نـه د اوبـو را اړولـو اواز (۳) بـک بـک ، بکواس ، پُوچه وینا ، عبث خبرې

**بُقچه** :-(بُ + قْ + چَه ) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بقچې ] بُخچه ، د رخت نه جوړه هغه کڅوړه چې پخوانو خلقو به جامې پکښې کښېښولې.

**بُقـراط** :-(بُ + قْ + را + طْ ) [ یو ، اس ، معـر ، مـذ ] د یونـان یـو مشـهور حکیم ؤ .د طب د علم د ښو ښو کتابونو مصنف ؤ.

حق حېـــران به ؤ زمونږ مکر ټګۍ ته
که زنده وې افلاطون،سقراط،بقراط (علیخان)

**بقه** :-(بَ + قْ + قَه ) [ پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : بقې ] بکه ، چینګه ، وازه.

**ـــ خولۀ** :- اص ، بکه خولۀ ، چینګه خولۀ ، وازه خولۀ.

**بُک** :-(بُ + کْ ) [ انګ،اس،مذ ] (۱) کتاب (۲) د وړاندې نه ځاې نیونه.

**ـــ کـول** :- اص (۱) ځـان تـه د اول نـه ځـاې نیـول ، سیټ ریـزرو کـول (۲) سامان د لېږلو دپاره ذمه وار سړي ته حواله کول او باقاعده ترې رسید اخستل.

**ـــ کېدل** :- اص ، (۱) ځاې نیولې کېدل ، سیټ ریزرو کېدل ، (۲) سامان د لېږلو دپاره ذمه وار سړي ته حواله کېدل او باقاعده رسید ترې اخستلې کېدل.

**بکا** :-(بَ + کا ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] خاړ پوڅې ، خړپوڅې.

**بکـارې** :-(بَ + کـا + رې ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بکـاري ، بکاریان ، (مؤ ، وا ، :بکارۍ ، ج : بکاریانې ] اَستازې ، اِستازې ، قاصد ، پېغام وړُونکې

**بکـال** :-(بْ + کـا + لْ ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مـذ ] (۱) هوښـیار او چالاک سړې (۲) بنګېدل ، ګېډل.

**بکاڼه** :-(بُ + کا + ڼَه ) [ اف ، پ (قاموس) ه : بکائن ، اس ، مؤ ، وا] بکیاڼه ، بدرکانې ، بکاینه.یوه ونه چې د بېرې په شان مېوه نیسي ، د دارو په ډول استعمالېږي.بیکیاڼه ، بُکیاڼه ، بیکاڼه.

**بکـاول** :-(بَ + کـا + وْ + لْ ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بکـاولې ] اشپز ، باورچي ، پخوُونکې ، اخلې پخلې کوُونکې.

**بکاؤ** :-(ب + کا + ؤ ) [ ه ، ص ] د خرڅون ، د خرڅولو دپاره ، د خرڅولو وړ.

**بکاؤلي** :-(بَ + کا + وَ + لیْ ) [ س ، اس ، مؤ ، وا ] د یو راجا د لـور نوم چې د هغې قصه د ګل بکاؤلي په نوم مشهوره ده.

**بک بک** :-(بَ + کْ + بَ + کْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] تورمرچ.

**بک بک** :-(بَ + کْ + بَ + کْ ) [ پ ، اس ، مر ، مذ ] (۱) بکواس، عبث خبرې ، بې مطلبه رغېدا (۲) د صراحۍ یا کوزې نه د اوبو را اړولو اواز.

**ـــ کول** :- اص ، (۱) بکواس کول ، عبث خبرې کول ، بې مطلبه رغېدل ، (۲) د صراحي نه د اوبو را اړولو اواز کول.

**ـــ کتل** :- اص ،(۱) څیر څیر کتـل ، نېغ نېغ کتـل (۲) په بې شرمۍ او بې حیایۍ سره څۀ ته کتل.

**په بکو بکو کتل** :-(اص ) (۱) په نېغو سترګو کتـل ، په بې شرمۍ کتـل (۲) په حېرانۍ کتل ، په بې وسۍ کتل.

**بکبکې** :-(بْ + کْ + بُ + کې ) [ اف : پ (قـاموس) ص ، مـذ ] پس پس پـه غـوږ کښې خبرې.

**بکبکي** :-(بَ + کْ + بَ + کي ) [ پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بکبکي ] عبث او فضولې خبرې کوُونکې ، لُوګ ژغېدُونکې.

**بُـک پوسـټ** :-( بُ + کْ + پـو + سْ + ټْ ) [ انـګ ، اس ، مـر ] د ډاک پـه ذریعه چاپه شوې کتاب یا بل څۀ کاغذ لېږنه چې پوره بند نۀ وي ، په دې مقابلةً کم ټکټ لګي.

**بکتر بند** :-(بَ + کْ + تَ + رْ + بَ + نْ + دْ ) [ فا ، اس ، ص ، مذ ] د اوسپنې په څادر کښې ګېر.

**ـــ ګاډې** :- اص .ټېنک ، ارمرډ کار ، هغه ګاډې چې د اوسپنې څادر پرې راڅرخېدلې وي.

**بکټ ګنج** :-(بِ + کَ + ټْ + ګَ + نْ + جْ ) [ پ ، اس ، مـذ ] پـه مـردان کښـې یـو مشهور بازار.

**بکر** :-(بَ + کَ + رْ ) پ ، اس ، مذ] چقماق ، بکره ، بکړې.

نۀ په پنډ ولېږي د هر کاڼي بڅرې
دې سوخـــته ســره بکر لري سودا (خوشحال)

**بُکرم** :-(بُ + کْ + رَ + مْ ) [ انګ ، اس، مذ ، وا] هغـه غټـه کپـړه چې د کوټ پـه استر کښې دننه لګولې شي.

**بکرماجیت** :-(ب + کَ + رْ + مـا + جيْ + تْ ) [ ه ، اس معر ، مذ ] د هندوستان یـو مشـهور بادشـاه تېـر شـوې دې .د هندوانو بکرمـي سـن چې د اوۀ پنځوس کاله قبل مسیح نه شروع کېږي.ددۀ په نوم مشهور دې.

**بکرمـي** :-(ب + کْ + رَ + مـيْ ) [ ه ، اس ص ، مـؤ ] د بکرماجیـت سـره تعلـق لرُونکې.

**بکرمي سن** :-(بکرمي + سَ + نْ ) [ ه ، اس ، ص ، مذ ] د هندوانو د حساب کال .

**بکـره** :-(بَ + کْ + رَه ) [ پ ، اس ، مـؤ ، وا ] (۱) بکـرۍ ، چقمـاق ، هغـه سپین کاڼې چې د پنډ سره په جنګولو بڅري ترې خېژي .اورټک

(۲) د میچنې لاندینے پل .

**بکره** :-(بِ+کْ+رَه) [ع ، ص ، مؤ ، وا] پېغله ، هغه ښځه چې واده شوې نهٔ وي .

کــــه تــــازه ژبه هر ګوره ښه ده
فارسي هم ډېره په خوند خوږه ده
چـــا ئې پـــلؤ د جمال وانهٔ خست
پښتــــو لا هسې بکـــره پرته ده (خوشحال)

**بکره** :-(ب+کْ+رَه) [پ (وز) اس ، مؤ ، وا ، ج : بکرې] (۱) بوقه بوکه ، د اوبو ډکولو ډولچه ، ډول یا ډولچه (۲) برقعه ، بورقه .

**بکرے** :-(بَ+کْ+رَے) [پ ، ه : بکرا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بکري (مؤ ، وا : بکری)] وز ، نر چیلے ، پسهٔ .

**بکرے** :-(بَ+کْ+رَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بکري] د مزري هغه ټوکری چې په شا خاوره پکښې وړلے شي .

**بکری** :-(بَ+کْ+ری) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ــ بکره .

**بکری** :-(بْ+کْ+ری) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] کنډ ، چیړ ، هغه وچه ژاوله یا زوغله چې د ونې سره لګېدلې وي .

**بکري** :-(بِ+کْ+رِيْ) [ه ، اس ، مؤ] سودا ، خرڅ ، خرڅون ، د دوکان وټک .

**بکري ټوپک** :-(بَ+کَ+رِيْ+ټو+پَ+کْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بکري ټوپکونه] هغه ټوپک چې په پنډ بکری چلېږي .

**بکس** :-(بَ+کْ+سْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بکسونه ، بکسینه] صندوق ، بکسه .

**بکس** :-(بَ+کْ+سْ)) [پ ، اس ، ص ، مذ ج (۱) د شربت یا د بلې مائع لاندې پاتې شونے خیرے (۲) لړ ، لژکي ، لړ کوټي ، پوټسکے .

په جامو سپینو پګړو ئې غلط نهٔ شي
په کونجکه نهٔ بدلېږي یو بکس دوي (عبدالعظیم)

**بک سترګے** :-(بَک+سْ+تَ+رْ+ګَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بک سترګي] (۱) نېغ سترګے ، هغه څوک چې سترګې ئې بکې او نېغې راوتې وي .(۲) بې شرم ، بې حیا .

**بکسکے** :-(بَ+کْ+سْ+کَے) [پ ، (خل) اس ، تصغ ، مذ ، وا] پوټسکے ، لړ کوټي ، لړ شان .

**بکس ګوټے** :-(بکس+ګو+ټے) [پ تر ، اس تصغ ، مذ ، وا ، ج : بکس ګوټي] وړوکے بکس ، بکسه .

**بکسوه** :-(بَ+کْ+سُ+وَه) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج بسکوپې] د اوسپنې هغه مېخکے چې د څهٔ څیز د تړلو یا نښلولو دپاره حلقه په کښې لګېدلې وي .

**بکسه** :-(بَ+کْ+سَه) [پ تر ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بکسې] و ــ بکس .

**بک کیپنګ** :-(بُک+کيْ+پِ+نْ+ګْ) [انګ ، اس ، مر] د حساب کتاب ساتلو علم ، بهی کهاته .

**بکل** :-(بَ+کْ+لْ) [اف : پ (قاموس) اس صو ، مذ] د چېلو یا بېزو اواز .

**بکنګ** :-(بُ+ک+نْ+ګْ) [انګ ، اس ۂ ، ص ، مذ] (۱) سامان بُک کول ، سامان بـل ځاے ته لېږلو دپاره په مقرر دفتر کښې سپارل (۲) ځاے نیول ، سیټ ریزرو کول .

**بُکنګ آفس** :-(بُکنګ+آ+ف+سْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا] د بُکنګ دفتر ، هغه ځاے چېرته چې سامان بُک کېږي .یا ټکټ اخستلے کېږي .

**بکنګ کلرک** :-(بُکنګ+کْ+لَ+رْ+کْ) [انګ ، اس، مذ ، وا ، ج : بُکنګ کلرکان] د بُکنګ کولو بابو ، هغه منشي څوک چې سامان بُک کوي یا ټکټ ورکوي .

**بکوا** :-(بَ+کْ+وا) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] وچه مېره ، خشکه مزکه ، بې اوبو او وښو سوې مزکه .

**بکـــواس** :-(بَ+کْ+وا+سْ) [ه ، اس ، مـــذ ، وا ، ج : بکواسُـــونه : بکواسینه] بک بک ، جک ، عبث او فضولې خبرې ، بې مطلبه ژغېدا ، خوشې وېنا ، پوچې خبرې .

**ـــــ کول** :- اص .بک بک کول ، جکېدل ، عبث او فضولې خبرې کول، بې مطلبه ژغېدا کول ،خوشې وېنا کول ، پوچې خبرې کول.

**بکواسی** :-(بَ+کْ+وا+سيْ) [ه ، ا س، ص ، مـذ ، وا ، ج : بکواسیان ، بکواسیون ، (مؤ ، وا: بکواسېه ، بکواسنې)] بک بک کوُونکے ، عبث او فضولې خبرې کوُونکې ، خوشې وېنا کوُونکې ، پوچ ژغېدُونکے .

**بکه خولهٔ** :- اص. و ـــــ بقه خولهٔ.

**ـــــ پاتې کېدل** :- اص.حېرانې پاتې کېدل ، بې ځوابه کېدل .

**ـــــ نیول** :- اص (۱) چینګه خولهٔ نیول (۲) حېرا ن اودربدل .

**بکیانه**:-(بَ+کْ+یا+نِه) [پ،اس،مؤ، وا ، ج : بکیانې] و ــ بُکانه .

**بُکیانه**:-(بُ+کْ+یا+نَه) [پ (شن) اس،مؤ،وا،ج : بکیانې] و ـــ بُکانه .

**توت ته بکیانه وئیل** :-مح .د شپې نه ورځ جوړول ، ناجائزه وئیل ، د رښتیاؤ نه سترګې پټول ، ناړامه نیول ، د څرګند حقیقت نه انکار کول ، په پړه ټینګېدل.

**بکیانه**:-(بَ+کْ+یا+نَه) [پ،اس ، مؤ ، وا ، ج : بکیانې] و ــ بکانه.

که ظاهر په خوند ترخه ده بکیانه
د معنې خوارهٔ ئې څهٔ زده دي ناجانه (مصري خان)

**بکېدل** :-(بَ+کې+دَ+لْ) [پ (ب ، خ) مص لا] ټرېدل ، پوچ ژغېدل ، غُل غُوشایهٔ خوړل.

**ـــــ ټرېدل** :- اص ، و ـــ بکېدل.

**بکېدُونکے** :-(بَ+کې+دُوْ+نْ+کَے) [پ (ب ، خ) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بکېدونکي] ټرېدُونکے ، پُوچ ژغېدونکے .

**بکېړه** :-(بَ+کې+ړَه) [پ ، ه : بکهېړا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بکیړې] جنجال ، جګړه ، فساد ، تکرار .

**بګ** :-(بَ+ګْ) [پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا، بګه ، ج : بګې)] (۱) غټ او دنګ ، مضبوط او لوړ (۲) بېکاره ، فضول ، بُګ ، کم عقل ، ناپوهه .

**بُګ** :-(بُ+ګْ) [پ (ګن) اس ، ص ، مذ ، وا] و ـــ بګ (۲).

**بګار** :-(بْ+ګا+رْ) [پ ، ه: بګهار ، اس صو ، مذ] د تېکې یا داغ دپاره په غوړو کښې د پیاز یا د اوړې سرهٔ کولو اواز .

**بګار** :-(بَ+ګا+رْ) [اف :پ (قاموس) اس ،مذ ، وا ، ج : بګارونه] (۱) چارخط، یو قسم لوبه (۲) خراش ، ټونګاره ، ګردش.

**بګارول** :-(بَ+ګا+رَ+وْ+لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] نوکارې لګول ، ګروُشېیل ، ګرژول.

**بګارونه** :-(بَ+ګا+رَ+وْ+نه) [اف : پ (قاموس) حمص] نُوکارې لګونه ، ګرو شبینه ، ګرژونه ،

**بګاروونکے** :-(بَ+ګا+رَ+وُوْ+نْ+کَے) [اف :پ (قاموس) اس،فا ع ، مذ ، وا، ج : بګاروونکي] نوکارې لګوونکے ، ګروشبیونکے، ګرژونکے.

**بګـارے** :-(بَ+ګـا+رے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] پـه اوبـو کښـې پخهکړې شوې سبزي چې غوړې په کښې نهٔ وي .یشولې سبزي.

**بګاربدل** :-(بَ+ګـا+رې+دْ+لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص لا] نوکـارې نوکارې کېدل ، ګرُوشېدل ، ګرژېدل.

**بګاربدنه** :-(بَ+ګـا+رې+دْ+نَـه) [اف : پ (قـاموس) حمص] نُوکـارې نوکارې کېدنه ، ګرُوشېدنه ، ګرژېدنه.

**بګاربدونکے** :-(بَ+ګا+رې+دُوْ+نْ+کے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ،

ج : بگاړېدونکي ] نُوکاري نوکاري کېدُونکي ، گروشېدُونکي ، گرژېدُونکي

**بگاړ** :-( بٙ+گا+ړٙ ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ] ناتار ، په شوملو کښې وړه کړې يا مېده کړې ډوډۍ.

**بگاړه** :-( بٙ+گا+ړَه ) [ پ (بنو) اس ، مؤ ، وا ، ج : بگاړې ] و ـ اَشر

**بُگاښ** :-( بُ+گا + شْ +يا بُ+گا+خْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص مذ ] مېنځگړي ، مند موني ، د دوؤ جنگېدونکو په مېنځ کښې بېلونه يا خلاصونه

**ـــــ ته ورتلل** :- اف ، اص.د جنگېدونکو کسانو خلاصولو ته ورتلل

**ـــــ کول** :- اف ، اص.د دوو جنگېدونکو کسانو سره خلاصونه .

**بُگاښچي** :-( بُ+گا+شْ+چي يا بُ+گا+خ+چي ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ] مېنځگړے ، مندموني ، خلاصوونکے ، بُگاښي ، بُگاښ والا.

**بگاښ والا** :-( بگاښ+وا+لا ) [ اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ] و ـــــ بُگاښچي.

**بگاښي** :-( بُ+گا+شيْ يا بُ+گا+خِيْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ] و ـــــ بُگاښچي.

**بگت** :-( بٙ+گٙ+تْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بگتيان ، (مؤ ، وا : بگته ، ج : بگتې ، بگتيانې ) ] خوشکے ، فضول ، بدچلن ، په لاروگودرو کښې اودرېدُونکے.

**بگتو** :-( بٙ+گٙ+تُو ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ] (۱) هغه شاعر چې بگتۍ جوړوي او وائي.(۲) مجلسي ، سازنده.

**بگتۍ** :-( بٙ+گ+تی ) [ پ ، اس ، مؤ ، ج ] د پښتو شعر يو مخصوص صنف چې په کښې سوال جواب وي .په عوامي سندرو کښې دا ډېر خوښولے شي.

**بگتي** :-( بٙ+گٙ+تٙ+تي ) [ پ (ب ، خ ) ص ، ج ] نخرې پخرې ، اوني پوني .

**ـــــ کول** :- ( ب ، خ ) اص.نخرې پخرې کول ، اوني پوني کول.

**بگر** :-( بٙ+گٙ+رْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] دود دستور ، رسم و رواج ، دا ټکے اکثر د باک سره يو ځاے استعمالېږي.لکه : باک بگر.

**باک بگر نۀ لرل** :-(مح) د دود دستور او رسم و رواج پروا نۀ لرل .د تهذيب نه پرېوتے کار کول.

**بگر** :-( بٙ+گٙ+رْ ) [ انگ ، اس ، ص ] و ـــــ بگے.

**بگرام** :-( بٙ+گٙ+را+مْ ) [ پ ، اس ، معر ، مذ ، وا ] و ـ باگرام.

ځو دا کاخ دل افروزي وي
پکښې دا جشن نوروز وي
تـر هغـــه پورې بگرامه
پـــه جهان مه شې بدنامه (کاظم خان)

**بگرے** :-( بٙ+گٙ+رَے ) [ پ ، (ب ، خ ) اس ، ص ، مذ ] غريب ، لُوځ لغړ ، خوار ، نېستمن.

**ـــــ کېدل** :- ( ب ، خ ) اص.غريب کېدل ، لوځ لغړ کېدل ، خوارېدل ، نېستمن کېدل

**بگړۍ** :-( بٙ+گٙ+ړَی ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ] دستار ، پگړۍ ، پټکے.

**ـــــ پرسو ابښودل** :- اف ، اص.لوئي موندل ، لوئې درجې ته رسېدل ، عزت او درناوے موندل.

**ـــــ د سره لوېدل** :- اف ، اص .(۱) بې عزته کېدل ، شرمېدل (۲) مړېدل ، وفات کېدل ، مړ کېدل.

**بُگړۍ** :-( بُ+گ+ړَی ) [ پ (کن) اس ، مؤ ] گگړۍ ، کرُوپې ، چيچړې ، چچوڼۍ.

**بگل** :-( ب+گٙ+لْ ) [ پ ، انگ ، بيوگل ، اس ، مذ ، وا ، ج :بگلونه بگلې ، بِگلينه ] د پيتلو نه جوړ سُرنا ئې يا ښکر چې عموماً په فوځ کښې د

خبردارۍ دپاره غږولے شي.

**ـــــ ږغول** :- اص. و ـــــ بگل غږول.

**ـــــ غږول** :- اص.(۱) بگل وهل ، ښکر پُوکل ، (۲) په يو مخ ژړا کول.

**د جنگ بگل غږېدل** :-( اص ) جنگ شروع کېدل ، د جنگ سر ننښلېدل.

**بگلولي** :-( بٙ+گٙ+لو+لي ) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ ] بؤ بلا ، هغه بلا چې ميانديې ماشومان پرې يروي.بگېلے.

**بُگلے** :-( بُ+گٙ+لَے ) [ اف : پ (قاموس) ، ه : بگلا ، اس ، مذ ] يو قسم ځاړے چې د اوبو په غاړه کښېني.

**بگڼ** :-( بُ+گٙ+نْ+ړْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] غټ تورمچ ،

**بُگڼول** :-( بُ+گٙ+نْ+ړْ+وْ+لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] و ـــــ بُړنول.

**بگڼه** :-( بٙ+گٙ+نْ+ړَه ) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج : بگڼې ] يو ازغن بوټے چې په قندهار کښې ورته کروړه وائي او خوړه مېوه لري.

**بُگڼېدل** :-( بُ+گٙ+نې+دْ+لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص لا ] و- بُړنېدل

**بگوري** :-( بٙ+گُوْ+رِيْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] د سپي حمله او په هغه وخت کښې غپا .

**ـــــ کول** :- اف ، اص.د سپي حمله او ورسره غپا کول .

**بگوري** :-( بٙ+گُو+رِيْ ) [ اف : پ (قاموس)اس ، ص ، مؤ ] (۱) د ونې نرۍ ښانگې (۲) پرېشان وېښتۀ ، خورې ورې زلفې.

**بگوړا** :-( بٙ+گو+ړا ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ] کچه پنير

**بگوړه** :-( بٙ+گو+ړَه ) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج : بگوړې ] کرُوت ، کرُت ، وچ پنير.

**بگوړه** :-( بٙ+گو+رَه ) [ پ ، ه : بهگوړا ، اس ، ص ] (۱) د فوځ د نوکرۍ نه تښتېدلے ، بگېل ، د کار نه پټ شوے (۲) بې غېرته

**بگوړے** :-( بٙ+گُو+ړَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بگوړي ، ( مؤ ، وا : بگوړۍ ) ] د غوا يا د مېښې بچوړے.

**بگوزے** :-( بٙ+گو+زَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] د ماشومانو يوه لوبه چې د لښتې سره ئې کوي.

**بگوله** :-( بٙ+گو+له ) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج : بگولې ] ماده يا ښځه ځناور چې خپل بچې ځان ته نۀ پرېږدي .بيلنگۍ ، ترټېدُونکې ، ترېدُونکې ، کتوره.

**بگه** :-( بٙ+گَه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بگې ] پرتوغاښ ، لال گنډه.

**ـــــ اچول** :- اص.پرتوگ ته پرتوغاښ اچول ، لال پيل.

**ـــــ پرانستل** :- اص (۱) پرتوغاښ خلاصول (۲) د کوروالي دپاره تيارېدل.

**ـــــ سستول** :- اص .(۱) پرتوغاښ نرمول ، ترل ، گنډه ورکول ، (۲) د کوروالي دپاره زر تيارېدل.

**د بگې سست** :-( اص ) د کردار کمزورے.

**د بگې غل** :-( اص ) بې اتباره ، بد فعله ، بدکرداره.

**بگه کرش** :-( بگه+کٙ+رَ+شْ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ] د وادۀ په اوله شپه ناوې د خپل خاوند نه چې کومې پيسې اخلي.

**بگو گوشه** :-( بٙ+گُوْ+گو+شَه ) [ کشميري ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بگو گوشې ] د ناشپاتۍ په شان يوه مېوه.

**بگې** :-( بٙ+گې ) [ پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : بگي يا بگيان ] د بگې سست ، هيجړا ، کُوني ، مخنث ، مفعول ، بگر.

**بگۍ** :-( بٙ+گی ) [ پ ، ه بگهی ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بگيانې ] گاډۍ ، د زړې زمانې يو خاص قسم ټانگه.

**بگيرکه** :-( بٙ+گيْ+رْ+که ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بگيرکې ] د ايوې موتے ، موتيۍ ، موتۍ.

**بګېـل** :-(بَ+ګې+لْ) [اف: پ(قاموس) ه بهګـیلا ،اس ،ص ، مـذ ، وا ، ج: بګـېلان ، (مؤ ، وا: بګېلـه . ج :بګېلې] بګـېلے . بګیلي . تښتـېدلے مارغهٔ ، بنګېل.

**بګېلے** :-(بَ+ګې+لَے) [پ، اس، ص، مذ ، وا، ج: بګېلي] و ـــــ بګېل.

**بګېلے** :-(بَ+ګې+لے) [پ(ګن)اس ، مذ ، وا ، ج: بګېلي] بؤ بلا ، سرې خور .

**بګینه** :-(بْ+ګيْ + نه ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ ] ګبینهٔ ، شات ، زښے

**بل** :-(بْ+لْ) [پ ، اس ، مذ (مؤ ، وا، بله ، ج : بلې] ] دویم ، پس ته ، وریسې

**په بل اړول** :- مح (۱) یوه خبره په بـل پـورې تپل،بـل د څهٔ خبرې ذمـه وار ښکاره کول (۲) په بل چا پور یا قرض زباډول.

**د بل په لاس مار وژل** :- مح.په بل سرې کار کول ، په بل چا د خطرې کار کول.

**د بل په وزرو الوتل** :- مح . د بل چا پـه طمـع لـوئي کـول ، د بـل پـه ويـنـا ځـان لوے شمارل.

**د بل غوښې خوړل** :- مـح . د بـل چـا غـیبت کـول ، پـه چـا پسـې ، پشـې شـا ږغـېدل

**د بل لاس ته سترګې نیول**:- مح.د بل لاس ته کتل،د بل چا نه طمع لرل.

**د بل لاس تـه کتل** :- مـح.د بـل چـا نـه طمـع لـرل ، تیـاره خـوړل ، کـار روزګـار نـهٔ کول، د بل لاس ته سترګې نیول.

**په بلو بلو سر کېدل** :- مح.اوتې بوتې غرول ، ګډې وډې وئیـل ، د بـې وقوفـۍ او ناپوهۍ خبرې کول.

**بل** :- (بَ+لْ) [پ ، اس ، مذ (مؤ ، وا: بلـه ، ج : بلې] روښـانه ، روڼ چې اور ئې اخستے وي ، لګېدلے.

د ملـــوکانو صحبت بل اور دے
د اور سکـروټه د دې بې وور دے
که تور هاتي ئې که تور مزرے ئې
ستا مې له اوره سره څهٔ زورور دے (خوشحال)

**په بل اور لاس منډل**:- ( اص ) ډېـر لـېوالـه کـېـدل ، زیـاتې بیـړې اخسـتـل بـې کچه تادي کول

**بِلْ**:- (ب+لْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بلونه ، بلینه ] د حسـاب کتـاب پرچـه یا کاغذ ، د اخستې مال رسید .

**بلا** :- (بَ+لا) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بلاګانې یا بـلاوې ] (۱) افت مصیبت ، هم ، بیماري ، رنځ.(۲) بؤ ، سرې خور

بـــلا دې ډېرې مینه ئې کور دے
د مینې کور کښې د بلا شور دے (اخون ګدا)

(۳) زیات ، ډېر ، کافي

بیا دې تور بانډهٔ د دواړو سترګو کړ بلا
بیـــا دې تورې زلفې د ښامارو نه بلا (خوشحال)

(۴) ګرانه ، سخته ، مشکله ، تکلیف ،

د رقیب علاج اسان دے بلا داشوه
زهٔ رحمان له خپله یاره نا ویسا یم

(۵) نفرت ، کرکه.

د ګـــونګټې د ګــل د بوی ـــه نه بلا ده
ژواک ژوندون واړه په بوئي د نجاست کا (خوشحال)

ـــــ **اخستل** :- ( اف ) اص.لالچ اخستل ، اري وړے کېدل ، لالچي جوړېدل ، بلا وراخستل.

ـــــ **پر بوتل** :- (ص) (۱) مصیبت نازلېدل ، په چا څهٔ چل کېدل (۲) زیات پېښېدل.

نهٔ مې پند نهٔ مې سوکند په تا اثر کا
څـهٔ بلا مو تر مېنځ پرېوتهٔ ګندونه (حمید)

ـــــ **پسې** :- (مح ) بـلا ورپـورې ، دا کلمـه هلـه وئـیلے شـي چې پـه یـو کـار کښـې د کوښښ کولـو نـه پـس هـم کامیـابي اونـهٔ شـي .د ویـزارۍ او مایوسۍ په وخت هم وئیلے شي.

ـــــ **پسې کول** :- (مح ) هېرول ، وېزاره کېدل ، پرېښول ، معاف کول.

ـــــ **پسې کېدل** :- (مح ) په ستر غم اختـه کېـدل ، پـه لـوے مصـیبت کښـې ګېرېدل.

ـــــ **په چا کېدل** :- (مح ) د یو کس تکلیف د بـل پـه سـر وراچېـدل ، د بـل تکلیـف او غم په سر اخستل .

ـــــ **ته رسول** :- (مح ) په مصیبت کښې ګېرول ، په غم اخته کول.

ګفتګو ازاد مارغهٔ په قفس بند کا
رســوي هــرې بــلا ته ماته ژبه (حمید)

ـــــ **دې واخلم** :- (مح ).تانه قربان شم ، تانه ځار شم.

ـــــ **رندېدل** :- (مح ) اص.د مصیبت او تکلیف نه خلاصے موندل.

ـــــ **سازول** :- (اص ).په بلا اخته کول ، په مصیبت کښې ګېرول.

هېڅ علاج مې د جهان په حکمت نهٔ شي
چــې مې ســازه په وجــود کا بلا طمع (حمید)

ـــــ **سازېدل** :- (اص ) بلاکښې ګېرېدل،په مصیبت یا غم کښې کېدل.

زړهٔ چې نهٔ دے مبتلا
پرې دې سازه شي بلا (خوشحال)

ـــــ **سرے** :- (اص ) .(۱) وران سړے ، بـد سـړے ، شـېطان سـړے (۲)تکـړه سړے ، نهٔ ستړے کېدونکے.

ـــــ **قبلول** :- (اص ) .تکلیف قبلـول ، د بـل مصـیبت او تکلیـف پـه سـر سـترګو منل، د بل کړان په ځان اخستل ، په بل پسې تلل.

ســل بــلا ئې قبـلوه وریسـې دروګه
ښائسته د جهان کل واړه خپل زړهٔ کا (خوشحال)

ـــــ **کول** :- (اص ) .(۱) بلا جوړول ، د چا نه بؤ بـلا سـازول (۲) فریـاد کـول ، ژړا انګولا کول ، یادول.

یار مې مرور دے خوک دے چې ئې پخلا کا
زر پــاسه ربــاره زمـــا زړهٔ پـــسې بـــلا کا (خوشحال)

(۳) غضب کول ، کمال څرګندول

تندارچې چې ورته ګوري حېرانېږي
بازیـــګر چې په بازیو کښې بلا کا (خوشحال)

(۴) په چا څهٔ چل کول ، کوډې تعویذونه کول.

ـــــ **کېدل** :- (اص ).(۱) ورانېدل ، دښمنېدل ، بد خواه کېدل

د هر چا یارۍ مې ولېدې په سترګو
هم هـــغه راته بلا شو چې مې یار ؤ (خوشحال)

(۲) د تکلیف او مصیبت باعث جوړېدل ،

د دانې په طمــع بند ازاد مارغهٔ شي
زر به ستا په ځان بلا شي داستا طمع (حمید)

(۳) په چا څهٔ چل کېدل ، کوډې تعویذ پرې کېدل

ـــــ **نازلول** :- (اص ).و ـــــ په بلا اخته کول.

په عالم کړې بلا ستا سترګو نزولے
څوک به څهٔ لره تهمت وایي په دهر (خوشحال)

ـــــ **ور اخیستل** :- (اف) اص.و ـــــ بلا اخستل.

ـــــ **وهـل** :- (اص) (۱) پـه مصـیبت کښـې ګېرېـدل ، پـه چـابلا پرېوتـل ، پـه بـلا ککړېدل (۲) بیمارېدل ، د بؤ بلا د وېرې نه بیمار پرېوتل.

ـــــ **ویل** :- (اص ) ډېرې خبرې کول ، زیات غږېدل.

**اُوده بلا** :- (اص ) خوبولې بلا ، پټ مصیبت پرته بلا .

اے مدام د نفس په زیرمه مبتلا
ځان ته ولـې وینـــوې اوده بلا (حمید)

**بده بلا**:- (اص) (۱) خرابه بلا (۲) ډېرمصیبت ، لوے غم ، ستر تکلیف.
اشـــنائي د زنـــدان هم بـده بلا ده
په سختئ به پرېږي د ا طوطا قفس (کاظم خان)

**بـــلا بتـــر**:- (بَـلا + بَ+تَ + رْ) [ پ ، ص ، ج ] قسـم قسـم څیزونـه ، خـراب څیزونه، ګډ وډ مال.

**بلا ډېر**:- (بَلا + ډې + رْ) [ پ ، ص ، ج ] ډېر زیات ، پرېوان ، کافي، بلا زیات

**بلا زیات**:- (بَلا + زْ + یا + تْ) [ پ ، ص ، ج ] و ـــ بلا ډېر.

**بلائي تر بلاؤ غالبې وي**:- مح . د یو نه ئې بل آفت زیات وي.

**بؤ بلا**:- (اص) داسې بلا چې چا لیدلې نۀ ده. خلق ئې د یرولو دپاره نوم اخلي.

**په بلا**:- (اص) په مصیبت ، په تکلیف ، په غم ، په جنګ.

**په بلا اخته کول**:- (اص) و ـــ بلا سازول.

**په بلا اخته کېدل**:- (مح) په بلا ککړېدل ، په مصیبت کښې ګېرېدل په جنګ اوښتل.

**په بلا اړول**:- (مح) په بلا اختـه کـول ، پـه مصیبت کښـې ګېـرول. پـه جنګ جګړو اخته کول.

**په بلا اوړېدل**:- (اص) (۱) د بلا سره مخامخ کېـدل (۲) پـه مصیبت اختـه کېـدل ، په بلا پېش کېدل.
هر چې واوړي په بلا د تورو زلفو
هغـــه بـیا ترکوره نۀ دے ورغلے (رحمان)

**په بلا پېش کېدل**:- (اص) و ـــ په بلا اوړېدل.
خدائے څوک پېښ مه کړه رحمانه
پـــه دا هســـــې رنـــګ بلا (رحمان)

**په بلا سر**:- (اص) په بلا اخته ، په مصیبت کښې ګېر ، په غم ککړ.

**پـه بـلا سـر کـول**:- (مـح) پـه بـلا اختـه کـول ، پـه مصیبت کښـې ګېـرول پـه غـم ککړول.

**په بلا سر کېدل**:- (اص) پـه بـلا اختـه کېـدل ، پـه مصیبت کښـې ګېرېـدل ، پـه غـم ککړېدل

**په بلا کښې وتل**:- (اص) و ـــ په بلا اوړېدل.
په تمام جهان به نۀ وي بل رسوا څوک
نۀ به بل وي کښے د تلے په بلا څوک (عیسٰي اخونزاده)

**په بلا ککړېدل**:- (اص) و ـــ په بلا اخته کېدل.

**توره بلا**:- (اص) (۱) تور بؤ ، تور ویروُونکے څیز.
چې په تورو سترګو تور رانجۀ شي پورې
لـــه یـــوې تورې بلا سل پاڅـــي نورې (حمید)
(۲) لوے مصیبت ستر تکلیف، عظیم غم.

**د بلا پاڅېدل**:- (اص) غم لرې کېدل ، تکلیف ختمېدل.

**د بلا څخه خلاصېدل**:- (اص) د مصیبت او تکلیف نـه خلاصـے مونـدل ، د جنګ نه
په امن کېدل.

**د بلا زوئے**:- (اص) (۱) تکړه ،بهادر ، تېز ، چابک (۲) وران، شېطان.

**د بلا نه بد کېدل**:- (اص) ډېر ورانېدل، د مصیبت او تکلیف سبب جوړېدل.

**د بلا نه ځان خلاصول**:- (اص) (۱) د تکلیف نـه ځـان خلاصـول (۲) د جنګ جګړې
نه لمن راکښل (۳) د ناکاره سړي نه بېلېدل.

**د بلا نه خلاصول**:- (اص) (۱) څوک د تکلیف نه ایستل (۲) د جنګ جګړې نه بچ
کول (۳) د ناکاره سړي د ملګرتیا نه بچ کول.

**د بلا نه خلاصېدل**:- (مح) (۱) د څۀ تکلیف یا مصیبت نه ځان ایسـتل (۲) د جنګ جګړې نه بچ کېدل (۳) د ناکاره سړي د ملګرتیا نه بچ کېدل.

**د جهان بلا**:- (اص) ټولې بلا ، ټول مصیبتونه ، ګرد تکلیفونه
د جهان بلا همه سره یو ځاے شوې
پـــه بانـــه د عاشقئ په ګدا راغله (اخون ګدا)

**د چا بلا اخستل**:- (مح) د چاغم په ځان کول ، د بل تکلیف پـه خپـل سراخسـتل ، همدردي کول ، په چا ځارېدل یا قربانېدل.
پرېږده چې پرې سېزي ستا د مخ بلا به اخلي
عشق د ے لکه اور عاشقان دي لکه سپاندې (خوشحال)

**د خدائے بلا**:- (اص) (۱) خدائي مصیبت (۲) لوے تکلیف ، سترغم

**سخته بلا**:- (اص) درنه بلا ، لویه بلا ، لوے غم ، لوے تکلیف.
لـــه هجـرانه بلـــه سخـــته بـلا نـشته
خدا ے دې نۀ کاندي زخمي په دا نشتر څوک (رحمان)

**سل بلا**:- (اص) سل بلاګانې ، لوے غمونه ، ستر مصیبتونه.

**سل بلا قبلول**:- (اص) سل بلاګانې قبلول ، لوے غمونه او ستر مصیبتونو تـه زړۀ نیول ، ځنبې.

**سل بلا ویل**:- (اص) بد ویل.

**لکه د بلا و پسې کېدل**:- (اص) د چا ډېر تنګول ، په چا پسې پسې ګرځېدل ، د چا لمن نۀ پرېښول.

**لویه بلا**:- (اص) (۱) ستره بلا ، غټ بؤ (۲) لوے مصیبت ، ستر آفت

**ناګهاني بلا**:- (اص) ناڅاپي افت ، اسماني افت.

**بلا**:- (بِ + لاَ) [ فا ] بغېر ، سېوا ، بې له دې.

**ـــ اجازت**:- (اص) بغېر اجازت ، بې تپوسه ، بې پوښتنې.

**ـــ تکلّف**:- (اص) (۱) بغېر د تکلف نه ، بې تکلفه ، (۲) بې وسواسه ، نېغ په نېغه.

**ـــ شرط**:- (اص) بغېر شرط نه ، بغېر د څۀ پابندئ نـه ، بې د وعدې نـه ، پـه ازادئ سره.

**ـــ شک**:- (اص) بې شکه ، بې شبُهې ، صحیح ، درست ، ټیک.

**ـــ ناغه**:- (اص) روزانه ، هره ورځ ، بغېر د ناغې ، تل تل.

**ـــ واسطه**:- (اص) بغېر واسطې نه ، بې وسیلې ، براه راست ، بې دریم ګرې نه. بلا وجهې.

**بـلا ټنګ پیپـر**:- (بْ + لا + ټِ + نْ + ګْ + پي + پَ + رْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ] سیاهي چُوس ، هغه غټ او جاذب کاغذ چې سیاهي پرې وچولے شي.

**بلاد**:- (بَ + لا + دْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : بلادونه ] ښاریه.
زۀ رحیم پـه بـــخارا کښې ارزو کـــړم
که مې خدا ے کړي په بـلاد د قندهار ګډ (عبدالرحیم هوتک)

**بلاربوالے**:- (بْ + لا + رْ + بْ + وا + لَے) [ پ ، حمص ] براالبـوالے ، حاملېدنـه ، خېټه کېدنه ، پېنه درنېدنه.

**بلاربـــول**:- (بْ + لا + رْ + بَ + وْ + لْ) [ پ ، مـص مـت ] (۱) براالبـول ، حاملـه کول، په اُمیند کول (۲) د کنځلو په ډول هم وئیلے شي.

**بلاربونه**:- (بْ + لا + رْ + بَ + وْ + نَه) [ پ ، حمص ] براالبونه ، پـه اُمیند کونـه ، حامله کونه.

**بلاربوُونـکے**:- (بْ + لا + رْ + بَ + وْ + وُوْ + نْ + کَے) [ پ ، اس ، فـا ع مـذ ، وا ، ج : بلاربوُونکي ] براالبوُونکے ، خېټه کوُونکے.

**بلاربـه**:- (بْ + لا + رْ + بَـه) [ پ ، اس ، ص ، مـؤ ، وا ، ج : بلاربـې ] براالبـه ، حامله، په خېټه ، په اُمیند.

**بلاربېدل**:- (بْ + لا + رْ + بې + دْ + لْ) [ پ ، مص لا ] براالبېدل ، خېټه کېـدل ،

په اُمیند کېدل ، پینه درنېدل.

**بلاربېدنه** :- (بْ+لا+رْ+بې+دْ+نَه) [پ ، حمص] برالبېدنه ، حاملېدنه ، خېټه کېدنه ، پینه درنېدنه.

**بلاره** :- (بُ+لا+رَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بُلارې] (۱) د باټېرانو یا مرزو نیولو جال (۲) هغه ساتلي باټېران یا مرزان چې د ښکار په وخت ئې ښکاریان د بُلارې سره نزدې په پنجرو کښې بند کېږدي . د هغو په اواز ځنګلي باټېران هلته راټولېږي او په جال کښې ګېرېږي.

**ـــــ ساتل** :- (اص) د ښکار دپاره باټېران یا مرزان ساتل.

**ـــــ لګول** :- (اص) د باټېرو یا مرزو د نیولو دپاره جال لګول.

**بلاغت** :- (بَ+لا+غَ+تْ) [ع ، اس ، مذ] سُوچه کلام ، د معنی او مطلب نه ډک کلام ، د علم بیان آخري حد ته رسېدل.

**بلاغُنډ** :- (بَلا+غُ+نْ+ډْ) [پ ، اس ، مذ] (۱) د نسوارو لوے ډبے یا ډبلے (۲) داسې ډنډا یا کوتک چې سر ئې غُونډ وي . (۲) یوه وُنه او د هغې د مېوې نوم.

**بلاک** :- (بْ+لا+کْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بلاکونه] (۱) د ځئه مکان یا احاطې حصه (۲) قالب ، فرمه (۳) ډله (۴) د سیمټو او بجرۍ یا باجرۍ نه جوړه خښته بندول.

**ـــــ جوړول** :- (اص) (۱) د عمارت یوه حصه تیارول (۲) قالب یا فرمه جوړول ، (۳) ډله جوړول (۴) د سیمټو او بجرۍ نه خښته جوړول.

**بلاکش** :- (بـلا+کَ+شْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا] تکړه ، تکلیف زغمونکے ، د مصیبت نه نۀ یرېدُونکے ، خواري کښ.

**بلاګے** :- (بلا+ګے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بلاګي ، (مؤ ، وا : بلاګۍ) ] (۱) ورکوټې بلا (۲) وران هلک.

**بلال** :- (ب+لا+لْ) [ع ، اس ، معر ، مذ] د رسول کریم صلی الله علیه وسلم مؤذن ، د دوي اواز ډېر زیات خوږ ؤ.

دواړو ولـــېږۀ حـــضرت پاک ته بلال
دوي دې زر اوواېه پاک حضرت ته حال (مولانا عبدالسلام)

**بلانړه** :- (ب+لا+نْ+ړَه) [اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مؤ ، وا ، ج : بلانړې] زوېرګے ، نرے نرے فریاد ، د بیمار فریاد یا ستنګې ، اُونګا.

**ـــــ ختل** :- (اص) فریاد راتلل ، زوېرګي اورېدلے کېدل ، بلانړه کول.

**ـــــ کول** :- (اص) و ـــــ بلانړه ختل.

**بلانګـوړے** :- (بْ+لا+نْ+ګُـوْ+ړَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بلانګوړي] بلي پش ، خرپاندے ، بلونګړے ، کوري بلي ، بلوړے.

**بلانۍ** :- (بَ+لَا+نَ+ی) [پ ، (ب ، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج] وادۀ ته راغوښتے شوے ټولے ، د نرو ښځو هغه ټولے چې د چا کره د وادۀ په بلنه ځي.

**بلانۍ بلانۍ خلق** :- (ب ، خ) اص. ډلې ډلې خلق ، ډېرې ډلې ، ډېر زیات کسان.

**بُلاوه** :- (بُ+لا+وَه) [پ (ظفر) ه : بُهلاوه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بُلاوې] غلطي ، فرق ، سهو ، تېروتنه.

**ـــــ راتلل** :- (اص) فرق راتلل ، په حساب کښې غلطي راتلل.

**ـــــ کول** :- (اص) په حساب کښې دوکه ورکول ، ډنډې وهل.

**ـــــ کېدل** :- (اص) په حساب کښې غلطي کېدل ، فرق راتلل.

**بلاوهلے** :- (بلا+وَ+هَ+لَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بلا وهلي] (۱) هغه ځوک چې په بلا ککړ شوي وي . (۲) ناپوهه ، کم عقل.

راشـه ګـوره نامـردان بلا وهلي
د بري مېدان پرېږدي لړې ترې زغلي (خوشحال)

**بلب** :- (بَ+لْ+بْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بلبُونه یا بلبینه] رڼک ، انډه ، د بجلۍ غونډه سپینه باتۍ ، د برق بتۍ.

**بلبل** :- (بَ+لْ+بَ+لْ) [فا : بُلبُل ، اس ، مذ ، وا ، ج : بلبلان ، بلبلون (مؤ ، وا : بلبله ، ج : بلبلې)] یو مشهور ښکلے مرغے چې خوږ اواز لري . ماشومان ئې نیسي او ساتي ئې.

**بلبل** :- (بَ+لْ+بَ+لْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] روښان ، ځلاند

**ـــــ کول** :- (اص) روښانه ښکاره کېدل . ځلکېدل.

**بل بل** :- (بْ+لْ+بْ+لْ) [پ ، ص ، مذ] جُدا جُدا ، بېل بېل ، نور نور

بل بل فکر ته جناب کله وزګار دے
زمـــانې ترې داسې راوستو غوبمنډ (جناب کاکاخېل)

**ـــــ رنګ** :- (اص) بل بل شان ، جدا جدا رنګونه.

**بلبلک** :- (بْ+لْ+بُ+لَ+کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د انګورو یا کورو د اوچېدو خاص مرض.

**بلبلکه** :- (بْ+لْ+بْ+لْ+کَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بلبلکې] یوه خوشرنګه توره او سپینه د بلبلې هومره مرغۍ چې سپرله هم ورته وائي.

**بلبله** :- (بَ+لْ+بَ+لَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بلبلې] (۱) ښځه بلبل ، ماده بلبل ، (۲) معشوقه

تۀ ګل د ګلاب ئې زۀ جناب به هم بلبل وم
ځـــکه دا بلـــبله د چمـن راسره ګرځي (جناب کاکاخېل)

(۳) د ګډا یو قسم ، ګډېدونکي کسان په ګول دائره کښې اودرېږي . ډمان د دائرې دننه ډول او سُرنا شروع کړي . د هغې سره دوي رو رو په ګډا شي او دغه ګډا په مزه مزه تېزوي . اخر دومره تېز پېړونه اوځرخونه خوړل شروع کړي چې تماشه کوُونکي ورته حېران شي . دریس ، اتڼ ، غړه.

**ـــــ اچول** :- (اص) د بلبلې ګډا کول ، دریس اچول.

**بلبلے** :- (بَ+لْ+بَ+لې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بلبلي] مشال ، مشعل.

**بلبن** :- (بَ+لْ+ بَ+نْ) [اس ، معرفه ، مذ] په هندوستان کښې د خاندانِ غلامان یو مشهور بادشاه چې نوم ئې غیاث الدین ؤ په کال ۲۲۴ هجري کښې په تخت ناست ؤ . دد ۀ په وخت کښې تا تاریانو په هندوستان حمله کړې وه و . ولې په شا تنبولې شوې وو.

**بل پرون** :- (بْ+لْ+پَ+رُوْ+نْ) [پ ، اس ، مذ] د پرون نه وړاندې ورځ.

**لا بل پرون** :- (اص) د بل پرون نه وړاندې ورځ.

**بلتستان** :- (بَ+لْ+ت+سْ+تـا+نْ) [اس ، معرفه ، مذ] د ګلګت سره نزدې یوه علاقه چې بلتي قوم په کښې اوسېږي . دې علاقې نه ګېر چاپېر دنګ دنګ غرونه دي.

**بلتي** :- (بَ+لْ+تيْ) [اس ، مذ ، مؤ] (۱) د بلتستان اوسېدونکے (۲) د بلتستان د اوسېدونکو ژبه چې د شینائي ژبو یوه څانګه ده.

**بلتي** :- (ب+لْ+تيْ) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بلتیانې یا بلتۍ] د رېل یا د جهاز د مال رسید ، دوه قسمه بلتۍ کولے شي . یو قسم کښې د مال کرایه اول ورکولے شي او د بل قسم کرایه د مال په رسید ادا کولے شي.

**ـــــ خلاصول** :- (اص) د رېل یا جهاز په ذریعه د راغلي سامان وصولول.

**ـــــ کول** :- (اص) د رېل یا جهاز په ذریعه سامان لېږل او د هغه سامان رسید اخستل.

**بلجیم** :- (ب+لْ ج+يْ+مْ) [اس ، معرفه ، مذ] په یورپ کښې یو ملک.

**بلجیمے** :- (بِ+لْ+جيْ+مَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بلجیمي] (۱) د بلجیم اوسېدونکے (۲) په بلجیم کښې جوړ شوے ټوپک.

**بلځائیګـه** :- (بْ+لْ+دْزائـے) ګـه) [اف : پ (قـاموس) ص] د بـل ځـاے اوسېدُونکے ، بېګانه ، مسافر ، اجنبي.

**بلچک** :- (بَ+لْ+چَ+کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] خاص قسم وابنۀ

چې د نوروز په ورځو کښې ټوکېږي او سرهٔ ګلونه کوي.

**بلخ**:- (بَ + لْ + خْ + اس معرفه ، مذ] د افغانستان د يو ښار نوم چې باخترهم ورته وائي.عرب جغرافيه دانانو ورته اُم البلاد وئيلي دي.

**بلخوا**:- (بل + خوا ) [پ ، ص] بل پله ، بل طرف ته ، بل لوري ته.

**بلخه**:- (بْ + لْ + خَه ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] جولاتنسته

**بلخے**:- (بَ + لْ + خَے ) [پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : بلخي ، بلخيان (مؤ ، وا : بلخۍ ، ج : بلخيانې ) ] د بلخ اوسېدونکے.

**ـــــ ګړ**:- لُغ.د بلخ ګړ ، د بلخي ګړ لم ډېر لوے وي.او ښهٔ ټوک او ټينګ وي.اص : ځورب سړے.

**بلـد**:- (بَ + لَ + دْ ) [پ ، ص ، مـذ ، وا ، ج ، (مـؤ ، وا : بلـده ، ج : بلـدې) ] واقف ، اشنا ، پېژندګلو.

**ـــــ ځــاروے**:- (اص) عــادت ځــاروے ، روږدے ځنــاور ، اېــل ځناور ،روږدے ځناور

**ـــــ سړے**:- (اص) اشنا سړے ، واقف ، پېژندګلو.

**نابلد**:- (اص) نا اشنا ، ناواقف ، چې بلدګيري ئې نهٔ وي ، مسافر

**بلد**:- (بَ + لَ + دْ ) [ع ، اس ، مذ ] ملک ، علاقه.

**طول بلد**:-(اص) د دنيا کُره ، د جغرافيې ماهرانو په اوږدو په درې سوه شپېتو حصو کښې تقسيم کړې ده.هرې حصې ته طول بلد وائي.

**عرض بلد**:- (اص) د دنيا کُره د جغرافيې ماهرانو په سارهٔ يا سورو په يو سل اتيا حصو کښې تقسيم کړې ده.او هرې حصې ته عرض بلد وائي .

**بلدتيا**:-(بَ + لَ + دْ +تْ + يا ) [پ ، حمص] بلدېدنه ، بلدوالے ، واقف کېدنه ، اشنا کېدنه ، بلدي ، بلد ګيري.

**بلد ګيري**:- (بَ + لْ + دْ + ګيْ + رِيْ ) [پ ، اس ، مؤ ] وــــ بلدتيا

**بلدول**:- (بَ + لَ + دَ + وْ + لْ ) [پ ، مص مت] واقف کول ، اشنا کول ،روږدې کول ، اېل کول ، د چا سره د چا پېژندګلي راوستل.

**بلدونه**:- (بَ + لَ + دَ + وْ + نَه ) [پ ، حمص] واقف کونه ، اشنا کونه ، روږدې کونه ، د چا سره د چا پېژندګلي جوړوونه.

**بلدي**:- (بَ + لَ + دِيْ ) [پ ، اس ، مؤ ] وـــــ بلدتيا .

**بلدېدل**:- (بَ + لَ + دې + دْ + لْ ) [پ، مص لا] واقف کېدل ، اشنا کېدل ، روږدې کېدل.پېژندګلي کېدل.

**بلدېدنه**:- (بَ + لَ + دې + دْ + نَه ) [پ ، حمص ] وــــ بلدتيا .

**بلديه**:- (بَ+لْ + د + يـه ) [ع ، اس ، مؤ ] ميونسپلټي ، د ښار د صفايۍ او صحت انتظام کوُونکې محکمه ، ددې محکمې ذمه وار غړي د ښار عوام په خپله د ووټونو په ذريعه خوښوي.

**بلســول[بلوځول]**:- (بْ +لَ +سَ /ځ+ وَ + لْ ) [ پ ، (ب ، خ ) مـص مـت ] (۱) تيـندک ورکـول ، بُـدري ورکـول ، ډغـره ورکـول (۲) دوکـه کـول (۳) په چا پېښول ، غرض کول.

**بلسـونه [بلوځونـه]**:- (بْ + لَ + سَ /ځَ+ وْ + نَـه ) [ پ ، (ب ، خ ) حمـص ] (۱) تيندک ورکونه ، ډغره ورکونه (۲) دوکه کونه.

**بلسوُونکے/ځ**:- (بْ+لَ+ سَ/ځَ+ووُ ) نْ+کَے ) [پ ، (ب ، خ) اس، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بلسوُونکي ] (۱) تينـدک ورکوُونکے ، ډغـره ورکـوُونکے (۲) دوکـه ورکوُونکے.

**بلسېدل / بلوځېـدل**:- (بْ + لْ + سـې /ځـې + دَ + لْ ) [پ ، (ب ، خ) مـص لا] (۱) تينـدک خوړل ، ډغـره خوړل ، بُدري خوړل ، (۲) په چا پېښـه کـول ، پـه چا ورپېښېدل (۳) دوکه کېدل.

**بلسېدنه/بلوځېدنه**:-(بْ +لَ + سې /ځې+دْ + نَـه ) [پ (ب،خ) حمص] (۱) تيندک خوړنه، ډغره خوړنه، بُدري خوړنه (۲) په چا پېښېدنه، په چا پېښـه کونه (۳) دوکه کېدنه.

**بلسېدُونکے/بلوځېدونکے**:- (بْ + لَ + سې /ځې+ دُوْ + نْ + کَے ) [ پ ، (ب ، خ) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بلسېدونکي ] (۱) تيندک خوړُونکے ، ډغره خوړُونکے ، بُدري خوړونکے ، (۲) په چا پېښـه کوُونکے ، پـه چا پېښېدونکے (۳) دوکه کېدونکے.

**بل شان**:- (بَل+شا +نْ) [پ ، ص] په بل رنګ ، بدل بدل ، بل قسم، عجيبه شان.

**ـــــ کېدل**:- (اص) بدلېدل ، فـرق پکښې راتلـل ، بـل رنګ کېـدل ، د خپلې خبرې نه اوښتل.

**ـــــ وئيل**:- (اص) په بل رنګ وئيل ، بدل وئيل ، د توقع خلاف وئيل

**بلشل**:- (بْ + لْ + شَ + لْ ) [ پ ، (ب ، خ ) مص مت ] ماشوم په اوربـې کښې ترل.

**بلشلے**:- (بْ + لْهٔ + شَ +لَے ) [پ ، (ب ، خ) مف ، مذ] ماشوم په اوربې کښې ترلے شوے.

**بلشـنه**:- (بْ + لْ + شَ + نَـه ) [ پ (ب ، خ ) حمـص ] د ماشـوم پـه اوربـې کښې ترنه

**بل صبا**:- (بْ + لْ + صَ+ با ) [پ ، اس ، مذ ] د صبانه بله ورځ.

**لا بل صبا**:- (اص) د بل صبا نه بله ورځ.

**بلغــار بــاد**:- (بْ + لْ + غـا + رْ + بـا + دْ ) [اف : پ (قـاموس) اس ص ، مـذ] د سپرلي د موسم خوږ نرے باد .

**بلغاريـه**:- (بَ + لْ + غـا رِ + يَـه ) [اس ، معرفـه ، مـؤ ] پـه يـورپ کښـې د يـو ورکوټي رياست نوم.دا اول د ترکي يوه حصه وه.

**بلغـاک**:- (بَ + لْ + غا + کْ ) [پ ،اس ، مـذ ، وا ، ج : بلغاکونه ] شور فريـاد ، چغې ، نارې سورې.

لکـه ګل شګفته رو تازه په باغ کښې
همـېشه د ښو بلـبلو پرې بلغــاک (خوشحال)

**ـــــ کول**:- (اص) ژړا فرياد کول ، شور زوږ کول ، نارې سورې وهل.

که وينې ژاړم ګريوان چاک چاک کړم
پــه غــولې ګرځـم غوغا بلغاک کړم
پــه دا بــه تــــللي ياران را نهٔ شي
ځکه بائېده دادې چې ځان بے باک کړم (خوشحال)

**بلغاکي**:- (بْ + لْ + غا+ کِيْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ) شور زوږ ، چخ پخ

**ـــــ کول**:- (اف) اص.شور فرياد کول.بلغاکې وهل.

**ـــــ وهل**:- (اص) وـــــ بلغاکې کول.

**بلغـراد**:- (بَ + لْ + غَ + را + دْ ) [اس معرفـه ، مـذ ] د يوګوسـلاويه نـومې ملک د تخت ځاے.

**بلغزو**:- (بَ+لْ+ غَ+زو ) [پ ، (ګن) اس] بې مطلبه خبرې ، بې مطلبه ژغېدا .

**بلغم**:- (بَ+لْ+ غَ+ مْ ) [ع ، اس ، مذ] کُرخه ، خراشکے ، د ټوخي سره چې کوم ټينګ شان توکاڼي را اوزځي.ګروبله.

**بلغمي**:- (بَ + لْ + غَ + مِيْ ) [ع ، اس ، ص ] د بلغمو تـاثير لـرونکے بلغم پېدا کوُونکے.

**بلغمي پيـالي**:- (بَلغمـي + پ + يـا + لـۍ ) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج ] وړه شان پياله چې لاستے ، لاسکے يا مُوټے ئې نهٔ وي.او د شنو چائيو دپاره استعمالولے شي.

**بلغمي تبه**:- (بلغمي + تَ+ به ) [پ ، اس ، ص ، مؤ ، وا] هغه تبـه چې د بيمار په سينه کښې بلغم جمع شوي وي.

**بلغمي جُلاب**:- (بلغمي + جُ +لا+ بْ ) [پ ، اس ، ص، مذ ] داسې جُلاب چې د بلغم د لرې کولو دپاره ورکولے شي.

**بلغمي مزاج** :- (بلغمي +مِ + زا+ جْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ] بلغمي طبع ، بلغمي خوئي

**بلقان** :- (بَ + لْ + قا + نْ) [تُر ، اس ، معرفه ، مذ] لُغ : غرونه ، په سوئيلي نمر ختيځ يورپ کښې د يوې لويې علاقې نوم چې څو رياستونه دي پکښې. په دې علاقه اول د تُرکو قبضه وه.

**بلقان پيکټ** :- (بلقيان + پې + ک + ټْ) [انګ ، اس ، مذ ] د بلقان معاهده . دا لوظنامه په کال ۱۹۵۴ء کښې د ترکو ، يونان او يوګوسلاويه په مېنځ کښې شوې وه .

**بلقيس** :- (بِ + لْ + قيِ + سْ) [ع ، اس ، معرفه ، مؤ ، وا] (۱) دسبا د ملکې نوم چې د سليمان عليه السلام په لاس ئې ايمان راوړے وو (۲) يو عام نوم .

**بلکه** :- (بَ+لْ+ که) [پ ، اس ، مؤ ] د ماشومانو د غاښونو د راوتو په وخت د ستونو بيماري.

**بلګ** :- (بَ + لْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) فا : برګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بلګونه ] د اونې پاڼه.

**بلګک** :- (بَ + لْ + ګَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) يو اوچ شان بوټے چې ځناور يې نۀ خوري . (۲) د سرو ګلونه چې د نټې نه راځوړند ښکاري.

**بُلګه** :- (بُ + لْ + ګه) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ ] بولګه ، ببلګه ، د غلا د مال نخښې ښانې يا درک.

**بللګئ** :- (بْ + لَ + لْ + ګَئ) [پ ، اس ص ، مؤ] و ـــ بلالګئ.

**بل ګنيځ** :- (بْ+لْ+ګيِ+دزْ) [اف : پ(قاموس) اس، مذ] بل صبا ، صبا نه بله ورځ.

**بلل** :- (بَ + لَ + لْ) [پ ،مص،مت] (۱) راغوښتل ، يادول (۲) دعوت ورکول (۳) چا ته نارې کول.

اهو چشـــمو ورلے زړۀ که هر څو بولم
نـــۀ مـــني لـــکه اهـــو بلـل زما (خوشحال)

**په بدو بلل** :- (اص) (۱) په بدې يادول ، په بدو ټکو د چا ذکر کول (۲) د تکليف يا مصيبت په وخت کښې څوک بلل.

**په ښو بلل** :- (اص) (۱) د ښۀ کار دپاره د چا راغوښتل ، (۲) د چا په ښو ذکر کول ، په ښۀ نامه يادول.

**خدا ے بلل** :- (اف) اص. د خدا ے تعالىٰ ذکر کول ، عبادت کول ، د الله تعالىٰ حکم منل.

**بللے** :- (بَ+لْ+لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : بللي ] (۱) راغوښتے شوے ، ياد کړے شوے (۲) دعوت ورکړے شوے (۳) په چا ناره کړے شوے .

**بلم** :- (بَ + لَ+ مْ) [ه ، اس ، مذ ، وا] وره نيزه ، شلګۍ ، بلمه ، بله.

زړۀ مې غوڅ شو په بلم د ببلتانۀ
تو يوم د ستـرګـو نم د ببلتانۀ (احمد دين طالب)

**بلماز** :-(ب + لْ + ما + زْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ،وا ، ج : بلمازان ، بلموزون (مؤ ، وا : بلمازه ، ج : بلمازي ، بلمازانې ، بلموزې)] (۱) هغه څوک چې لمونځ نۀ کوي (۲) پليت، ناپاک ، ګنده، سخا.

**بلمازي** :- (ب + لْ + ما + زيْ) [پ ، ص ، مؤ ] (۱) بې نمازي ، چې لمونځ نۀ کوي (۲) ناپاکي ، پليتوالے.

**بلمه** :- (بَ + لْ + مَه) [پ ، ه : بلم ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بلمې ] و ـ بلم

**بلمګي** :- (ب + لْ + مَ + ګي) [پ (ظفر) اس ، ص ، مذ] (۱) بې مالګې ، بې نمکه ، بلمنګ ، چې مالګه پکښې نۀ وي . بې ذائقې ، بې خونده (۲) هغه څوک چې رنګ ئې جاذبيت نۀ لري.

**بلمنګ** :- (بَ + لْ + مَ + نْ + ګْ) [پ ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا : بلمنګه ج : بلمنګې ) ] و ـــ بلمګي.

چا بار لېږدولے څوک لاوس په دې لاړ تلې
مالګه کاروان لاړ شه بلمنګ داغ بې مزې (حافظ الپوری)

**بلمنګتوب** :- (بَ + لْ + مَ + نْ + ګْ + تو + بْ) [پ ، ص ، مذ] بلمنګوالے ، بلمنګتيا ، بې خوندي، بې نمکي ، بلمګي.

**بلمنګتيا** :- (بَ + لْ + مَ + نْ + ګْ + تْ + يا) [پ ، ص ، مؤ] و ـ بلمنګتوب.

**بلمنګوالے** :- (بَ +مَ +نْ + ګْ + وا +لَے) [پ،ص ، مذ] و ـ بلمنګتوب.

**بلمنګي** :- (بَ + لْ + مَ + نْ + ګي) [پ، ص ، مؤ] و ـ بلمنګتوب.

**بلمنګول** :- (بَ + لْ + مَ + نْ + ګَ + وَ + لْ) [پ ، مص مت ] (۱) بې مالګې کول ، په څۀ خوراک کښې مالګه نۀ اچول . (۲) بې خونده کول ، بې عزته کول.

**بلمنګېدل** :- (بَ + ل +مَ + نْ + ګې +دَ + لْ) پ، مص ، لا] (۱) بې مالګې کېدل ، په څۀ خوراک کښې مالګې نۀ اچولے کېدل. (۲) بې خونده کېدل ، بې عزته کېدل .

**بلميغ** :- (بَ + لْ + مې +غْ) [پ ، اس ، ص ، مذ] (۱) بې نمکه سړے ، ګنجے (۲) ظلم زور ، زياتې.

زورور چې په لاس ونيسي ناسازه
هــائے توبــه د زورورو د بلميغ ( خوشحال

**بلنځري** :- (بْ + لَ + نْ + دزْ + رِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ج] د شرې يا پټو د پېښې نغښتلي مزې .

**بلنځه** :- (بْ + لَ + نْ + دزَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بلنځې ] برلنځه ، د نښترو کورنۍ يوه اونه.

**بلنځه** :- (بْ + لَ + نْ + دزه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بلنځې ] (۱) ملابند ، د ملا ترلو هغه پټۍ چې د وريو نه جوړه وي.

ختـکواله بلنځه ښۀ زما تر ملا ده
نـه شـــوه په نوکرۍ په کسبونو (خوشحال)

(۲) پرتوغاښ ، بګه ، لال ، ګنډه .

**ـــــ تر شا کول** :- (اص) (۱) په پټۍ ملا ترل (۲) کار ته ځان تيارول.

**بلنځه** :- (بَ + لْ + نْ + دزه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د وادۀ بلنه د وادۀ ډوډۍ چې بللي خلک ورته راځي.

**بلنځه** :- (بَ + لَ + نْ + دزَه) [پ (سو) اس ، مؤ ، وا] اُوږدۀ وېښتۀ ، لُومه يا تار .

**بَلند** :- (بَ + لَ + نْ + دْ) [فا : بُلند ، بلند ، ص ، مذ ، وا ، ج : بلندان (مؤ ، وا : بلنده ، ج : بلندې) ] اوچت ، پورته ، پاس ، چګ ، جګ ، هسک .

په څۀ شان کړم وايه ښکل استان دتا
تـــر اســـمانه دے بلنـــد ايوان د تا (کاظم خان)

ج: بلندان د دنيا پست دي که ئې وينـــې
نۀ کړه هسک له زمکې سر لوړو کمرو (کاظم خان)

مؤ: کــه بلنده مرتبه د چا په کار وي
لوے مقام دے عدالت په دا دنيا (رحمان)

مؤ، ج: د بلنـدې په قامـت باندې مئـين شوم
هر چې لوئې چارې کاندي هغه لوے شي (خوشحال)

**بلند اقبال** :- (بلند + ا + قْ + با + لْ) [فا ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا : بلنداقباله ، ج : بلنداقبالې )]د ښۀ اقبال خاوند ، خوش قسمت د ښې نصيبې څښتن

**بلند بانګ** :- (بلند + با + نْ + ګ) [فا ، اس ص ، مذ (مؤ ، وا : بلند بانګه ج : بلند بانګې) ] ډېر اوچت ، لوے.

بلند بانګ ئې لکه غر شه
چې اسلام پـرې منور شه (کاظم خان)

**بلندپایه**:- (بلند + پا + یَه) [فا، اس، ص] لویه مرتبه، عزت، غوریځ.

**بلند پرواز**:- (بلند+پ+رْ+وا+زْ) [فا، اس، ص، مذ] (۱) اوچت الوتونکے (۲) د لوئي مرتبې خاوند (۳) د ښۀ نظر خاوند.

**بلند حوصله**:- (بلند + حو + ص + لَه) [فا، اس، ص] بهادر، دلېر، چې حوصله ئې اوچته وي. نۀ وېرېدونکے، بلند همت.

**بلند نظر**:- (بلند + ن + ظَ + رْ) [فا، اس، ص، مذ، (مؤ، وا: بلند نظره، ج: بلند نظرې)] (۱) د اوچت نظر خاوند، د غوریز فکر مالک (۲) د لوئې حوصلې خاوند (۳) د خپل حېثیت نه لوے کار کوُونکے.

**بلند همت**:- (بلند + ه + مْ + مَ + تْ) [فا، اس، ص، مذ (مؤ، وا: بلند همته، ج: بلند همتې)] و ــــ بلند حوصله.

چېرې نه چې دار محروم په مېـــدان پرېږدي

کـــه یـــو ســـر پـــه تـــن لـــرې بلند همته (کاظم خان)

**بلندره**:- (بَ + لَ + نْ + دْ + رَه) [پ (ب، خ) اس، مؤ، وا، ج: بلندرې] و- اشر.

**بلندره**:- (بْ + لَ + نْ + دْ + رَه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: بلندرې] دعوت، مېلمستیا، ډوډۍ، تیکاله.

**بلندي**:- (بَ + لَ + نْ + دِيْ) [فا: بُلندي، بِلندي، ص، مؤ، وا، ج: بلندۍ] اوچتوالے، هسکوالے، لوړتیا، لوړتوب.

د خوبانو بلنـدي په تخت وتاج ده

زۀ به څۀ هواداري د تخت وتاج کړم (حمید)

**بلندیکه**:- (بَ + لَ + نْ + دِيْ + کَه) [پ (وز) اس، ص] زر بلېدونکے، زر اور اخستونکے.

**بلنډه**:- (بَ + لَ + نْ + ډَه) [پ، اس، مؤ، وا، ج: بلنډې] شوتیې لیت، ښنبتر ورکوټے لرګے چې د ډیوې په ځاے ئې بلوي.

**بلنډو**:- (بَ + لَ + نْ + دُوْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] شب برات.

**بلنګ**:- (بْ + لَ + نْ + ګْ) [اف: پ (قاموس) اس، ص، مذ، (مؤ، وا: بلنګه، ج: بلنګې)] تازه، ښائسته، ښکلے، ډولے، شُوشته.

**بلنګ**:- (بْ + لَ + نْ + ګْ) [اف: پ (قاموس) حمص] بلنه، غوښتنه، یادونه.

**بلنګ**:- (بْ + لَ + نْ + ګْ) [پ (ب، خ) ص، مذ (مؤ، وا، بلنګه، ج: بلنګې)] څرګند، ښکاره، جوت، په ډاګه.

**بلنګېدل**:- (بْ + لَ + نْ + ګې + دَ + لْ) [پ (ب، خ) مص لا] څرګندېدل، ښکاره کېدل، جوتېدل، په ډاګه کېدل.

**بلنه**:- (بَ + لَ + نَه) [پ حمص] یادونه، غوښتنه، دعوت.

**بلو**:- (بَ + لَو) [پ (ظفر) اس، مذ] و ــــ برجو.

**بلو**:- (بَ + لو) [پ، (ب، خ) اس، مؤ، وا، ج: بلوګونې] و ــــ بلا.

**بل وار**:- (بَ + لْ + وا + رْ) [پ، اس، مذ] بل ځل، دوباره، دویم ځل.

بـیا راتله د دې جهان ته دوبار نشته

بل وار نشته بل وار نشته وار دے دا (رحمان)

**بلو پرنټ**:- (بْ + لُوْ + پْ + رِ + نْ + ټْ) [انګ اص] د څۀ عمارت یا ابادۍ خاکه، جنسي تصویرونه یا فلمونه.

**بلو**:- (بَ + لَو + تْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] جُخت، پرله پسې، متواتر.

**بلوټ**:- (ب + لو + تْ) [اس، معر، مذ] د ډېره اسماعیل خان په ضلع کښې د یو کلي نوم چې کجورې ئې مشهورې دي.

چې خرما ئې د بلوټ نۀ وي خوړلې

و هغـــو تـــه پتـوے خرما خوند وي (خوشحال)

**بلوټ**:- (بْ + لُوْ + ټْ) [اف: پ (قاموس) انګ: بولټ، اس، مذ] بولټ، د دروازې پورې کولو دپاره د اوسپنې نه جوړه ډنډه.

**بلوټه**:- (بْ + لو + ټه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] ډیوټ، د ډیوې کښېښولو ځاے.

**بلوچ**:- (بَ + لو + چْ) [اس، مذ، وا، ج: بلوچیان، (مؤ، وا: بلوچه، ج: بلوچې)] د بلوچ قبیلې غړے.

**بلوچستان**:- (بَ + لو + چ + سْ + تا + نْ) [اس، معرفه، مذ] د قبلئیز پاکستان د یوې صوبې نوم، چې پښتانۀ او بلوچ پکښې اوسي.

**بلوچي**:- (بَ + لو + چِيْ) [اس معر، مؤ] د بلوچو ژبه.

**بلوچے**:- (بَ + لو + چے) [اس، مذ، وا، ج: بلوچیان] و ــــ بلوچ.

**بلوخ**:- (بَ + لو + خْ) [اس، مذ، وا، (مؤ، وا، بلوخه، ج: بلوخې)] و ــــ بلوچ.

پـــه رنـــګ په حسن تازه بلوخه ئې

په تن کښې سپینه تر تازې پوخه ئې (خوشحال)

**بلودل**:- (بْ + لو + دْ + لْ) [پ مص مت] (۱) مړل، سُولول (۲) لاس وروړل (۳) سوخته ول، غصه کول، قهرول.

**بلودلے**:- (بْ + لو + دْ + لَے) [پ، مف، مذ، وا، ج: بلودلي] (۱) مړلے، سُولولے (۲) لاس وروړلے شوے (۳) سُوخت، غصه شوے، قهر شوے.

**بلودنه**:- (بْ + لو + دْ + نَه) [پ، حمص] (۱) سولونه، مبنسه (۲) لاس ور وړنه (۳) سُوختونه، قهرونه، غصه کونه.

**بلودُونکے**:- (بْ + لو + دُوْ + نْ + کَے) [پ، اس، فا ع، مذ، وا، ج: بلودونکي] (۱) سُولوُونکے، مبنُونکے، (۲) لاس ور وړونکے (۳) سوختوُونکے، قهروُونکے، غصه کوُونکے.

**بلوده**:- (بْ + لو + دَه) [پ، اس، مو، وا] (۱) ټکره، ډغره، بُدرې تیندک، (۲) تنازعه، دښمني.

ــــ **پرېوتل**:- (اص) دښمني او مخالفت پیدا کېدل، بلوده راتلل.

ــــ **خوړل**:- (اص) تیندک خوړل، ټکره خوړل، بُدرې خوړل.

ــــ **راتلل**:- (اص) و ــــ بلوده پرېوتل.

ــــ **کول**:- (اص) چاته څۀ ځاني یا مالي نقصان رسول، چیړل، بلوخه کول.

**بلور**:- (ب + لو + رْ) [ع، اس، ص، مذ] شیشه، صفا.

زړۀ دې سخت دے په سختۍ تر سخته کانیه

کـه درسـتـ تـن دې مـصفې دے تر بلور (عبدالقادر خټک)

**بلوربه**:- (بْ + لو + رْ + بَه) [پ، (ب، خ، ښنو) اس، ص، مؤ، وا، ج: بلوربې] و ــــ بلاربه.

**بلوره**:- (بُ + لو + رَه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] مالش، مښل.

**بلوري**:- (ب + لو + رِيْ) [پ، اس، ص] د شیشې نه جوړ چڼ کېدونکے.

**بلوري**:- (ب + لو + رِيْ) [پ، اس، ج] د شیشې نه جوړ غونډ شان غونډاري چې ماشومان لوبې پرې کوي، ګیني، هنډان.

**بلوړي**:- (ب + لو + ړي) [پ، اس، مذ، وا] و ــــ بلانګوړي.

**بلوس [ددې او هم ددې لاندینې مرکباتو ټولو ټکیو کښې د س ربښه په ځ کښې ښکاري]**:- (بْ + لو + س) [پ، اس، مذ] بلوسه، نزدیکت، چېړ، د تکلیف په نیت نزدې کېدنه.

**بلوسل**:- (بْ + لو + سَ + لْ) [پ، مص مت] چېړل، چېړ کول، تکلیف ور رسول، بلوسه کول.

چې پېه خوړو زړونو بلوسي سزا مومي

ښۀ چـې خـوار شۀ په دنیا غماز زما (خوشحال)

**بلوسلے**:- (بْ + لو + سْ + لَے) [پ، مف، مذ، وا، ج: بلوسلي] تنګ کړے شوے، چېړلے شوے، بلوسولے.

**بلوسول**:- (بْ + لو + سَ + وَ + لْ) [پ، مص، مت] (۱) کرکه پیدا کول (۲) چېړل (۳) خفه کول، تنګول.

**بلوسولے** :- (بْ + لو + سَ + وْ + لے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : بلوسولي] و ــ بلوسلے).

**بلوسونه** :- (بْ + لو + سَ + وْ + نَه) [پ ، حمص] چیړنه ، تنګونه.

**بلوســوُنکے** :- (بْ + لــو + سُــوْ + نْ + کَــے) [پ ، اس فــا ع ، مــذ ، وا ، ج : بلوسُونکي] ازاري ، تکلیف رسوُونکے ، چیړوُنکے.

**بلوســوُونکے** :- (بْ + لــو + سَ + وُو + نْ + کَــے) [پ ، اس فــا ع ، مــذ ، وا ، ج : بلوسوُونکي] و ــــ بلوسوُنکے.

**بلوسه** :- (بْ + لو + سَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بلوسې] و ــ بلوس.

**ـــــ کول** :- (اص) چیړچاړ کول ، تکلیف ورکولو په غرض نزدې کېدل ، ځان ته ځوک پارول.

**بلوسېدل** :- (بْ + لــو + سې + دْ + لْ) [پ ، مــص لا] (۱) ډېغره خوړل ، تیندک خوړل (۲) کرکه کېدل ، خفه کېدل (۳) ازارېدل ، تکلیف رسېدل.

زړهٔ مــې مینــه د حلوا مړې ګڼله
بارې اوس ولمسېدهٔ چې بلوسېدهٔ (حمید)

**بلوسېدل** :- (بْ + لــو + ســې + دْ + لَــے) [پ ، مــف ، مــذ ، وا ، ج : بلوسېدلي] و ــ بلسېدلے.

**بلوســېدنه** :- (بْ + لــو + ســې + دْ + نَــه) [پ ، حمــص] (۱) کرکــه ، نفــرت ، (۲) خفګان ، زړهٔ بدے.

**بلوســېدُونکے** :- (بْ + لــو + ســې + دُوْ + نْ + کَــے) [پ ، مــف ، مــذ ، وا ، ج : بلوسېدونکي] و ــــ بلسېدُونکے.

**بلوسېدهٔ** :- (بْ + لو + سې + دَه) [پ حمص] و ــــ بلوسېدنه.

**بلوط** :- (بَ + لُوْ + طْ) [ع ، اس ، مذ] څېړۍ ، یو قسم اونه.

**بلوغ** :- (بَ + لُوْ + غْ) [ع ، اس] لُغ : حد تــه رسېدل ـ اص : ځوانېدل ځوانۍ ته رسېدل ، بلوغت ، نوځېزي.

**بلوغت** :- (بَ + لُوْ + غَ + تْ) [ع ، اس] و ــــ بلوغ.

**بلوک** :- (بْ + لُوْ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د شلو نــه تر پنځوسو پورې د ساه لرونکو څیزونو ټولے (۲) د شلو نه تر پنځوسو سپاهیانو یا عسکرو ټولے ، پلټون.

**بلــوک مشــر** :- (بلــوک + مَ + شَ + رْ) [اف : پ (قــاموس) اس ص ، مــذ وا ، ج : بلوک مشران] ضابط ، پلټون کمانډر ، د یو بلوک عسکرو کمانډر.

**بِلوګے** :- (بِ + لَو + ګَے) [پ ، اص ، تصغیر ، مذ ، وا ، ج : بلوګي (مؤ ، وا ، ج : بلوګۍ)] (۱) پیشوګے ، د پیشو بچے ، بلونګړے ، بلیکے.

**بلول** :- (بَ + لَ + وَ + لْ) [پ ، مص مت] اور لګول ، اور ورته کول ، روښانه کول.

**بلومــه** :- (بْ + لــو + مَــه) [پ ، (ب ، خ) اس ، مــذ ، وا ، ج : بلــومې] د ټُــوخې بیماري ، زُکام ، د یخنۍ مرض.

**بلون** :- (بَ + لُوْ + نْ) [پ ، اس ، مذ] بلنه ، دعوت ، میلمستیا ، ډوډۍ.

**بلونډۍ** :- (بْ + لُــوْ + نْ + ډۍ) [اف : پ (قــاموس) اس ، مــؤ] بُخڅــۍ ، وړه کڅوړه.

**بُلونکے** :- (بَ + لُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فــا ع ، مــذ ، وا ، ج : بلُونکي (مــؤ ، وا : بلونکې)] بلونے ، غوښتونکے ، یادوُونکے ، دعوت ورکوُونکے.

**بلونګ** :- (بَ + لَ + وَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ــ بلونه.

**بلــونګړے** :- (ب + لــو + نْ + ګْ + ړَے) [پ ، اس ، تصــغیر ، مــذ ، وا ، ج : بلونګړي] (۱) د اونې پیشــوګے ، بلــې پــش ، حزپانــدے ، کــوړې بلــې ، پیشوګے (۲) بلوګے ، د پیشو بچے (۳) نولے ، سربوُنے ، سربونک.

**بلونــه** :- (بْ + لَ + وْ + نَــه) [پ ، حمــص] اور لګونــه ، اور پــورې کونــه روښانه کونه.

**بلونے** :- (بَ + لُوْ + نَے) [پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : بلُوني (مؤ ، وا : بلونې)] و ــــ بلُونکے.

**بلوُونکے** :- (بَ + لَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : بلوُونکي ، (مؤ ، وا : بلــوونکې)] اور لګــونکے ، اور پــورې کــوُونکے ، روښــانه کــوُونکے ، بلوُونے.

**بلوونے** :- (بَ + لَ + وُوْ + نَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بلووني] و ــــ بلوُونکے

**بلوه** :- (بَ + لْ + وَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بلوې] فســاد ، جګــړه شــورش ، بغاوت ، اړے ګړے ، برید ، حمله.

**ـــــ کول** :- (اص) فساد کول ، جګړه کول ، شورش کول ، بغاوت کول ، اړے ګړے جوړول.

**ـــــ کول** :- (اص) فساد کېدل ، جګړه کېدل ، شورش کېدل ، بغاوت کېدل ، اړے ګړے جوړېدل.

**بله** :- (بَ + لَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بلې] و ــــ بلم.

**بله** :- (بْ + لَه) [پ ، اس ، مؤ] دویمه ، نوره.

که رښاده پیروي د محمد ده
ګڼه نشــته په جــهان بله رښا (رحمان)

**بله پله** :- (اص) بل پله ، بل طرف ، بل خوا.

**بله خبره** :- (اص) دویمه خبره ، نوره خبره.

**بله خوا** :- (اص) بل خوا ، بل طرف ، بل لور.

**بله روځ** :- (اص) بل ورځ ، دویمه ورځ ، بله نېټه.

**بله ورځ** :- (اص) و ــــ بله ورځ.

**بــر لــه خــوا را اړول** :- (اف) مــح ـ (۱) زیــات خرابــول ، د لاډو بــادو ویســتل ، (۲) صبرول (۳) تابعدار کول.

**بِلــه** :- (بِ + لَــه) [پ ، اس ، مــؤ ، وا ، ج : بِلې] فیتــه ، د فــوځي ترقــۍ نخښــه ، بتۍ.

**ـــــ اخستل** :- (اص) عهده اخستل ، ترقي موندل.

**بلها** :- (بَ + لْ + ها) [اف : پ (قاموس) ص] بلا ، زیات ، پرېوان ، کافي ، ډېر.

**بلهار** :- (بَ + لْ + ها + رْ) [پ ، اس ، مذ] قربان ، ځار ، جار ، لوګے کېدل

ځارسم بلهار شم د یار تر نامــه
د یــار تــر خطه تر ښهٔ پیغامه (خوشحال)

**ـــــ کول** :- (اص) قربانول ، ځارول ، لوګے کول.

که زما په نظر کنبېوزې
زهٔ به ځان کړم ترې بلهار (خوشحال)

**ـــــ کېدل** :- (اص) قربانېدل ، ځارېدل ، لوګے کېدل.

**بلهارول** :- (بَ + لْ + ها + رَ + وَ + لْ) [پ ، مص مت] قربانول ، ځارول ، لُوګے کول

**بلهاري** :- (بَ + لْ + هَا + رَيْ) [پ ، اس ، مؤ] قرباني.

چې د یار د راغلو زېرے په ما وکا
تــر هــغهٔ سرې به زهٔ شم بلهاري (خوشحال)

**بلهارېدل** :- (بَ + لْ + هــا + رې + دْ + لْ) [پ ، مــص لا] قربانېــدل ، ځارېــدل ، لوګے کېدل.

**بله مانِس** :- (بَ + له + ما + نْ + ِ + سْ) [پ (عا) ه : بهلا مانس ، اس ص ، مذ (مؤ ، وا : بله مانِسه ، ج : بله مانسې)] شریف ، د ښهٔ خوئي خاوند ، بلیمانِس.

**بُلهــوس** :- (بُ + لْ + هَ + وَ + سْ) [پ (عــا) ع : ابوالهــوس ، اس ، ص مــذ] د هوس خاوند ، عیاش.

د هوس پرده چې لر شي ټول وصال دے
بُلــهوس بـــه د هجــــران خطر لري (بهادرشا ظفر)

**بلهېر** :- (بَ + لْ + هې + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] بل ځل ، بل وار ، بیا ، دویم ځل

**بلي:** - (بَ + لِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ج] د ماشومانو په ژبه متیازو ته وائي.

**بلي** :- (بَ + لِيْ) [پ (ب ، خ ، وز) اس ، مؤ ، وا ، ج : بلیکی] پیشو.

**بلـي** :- (بَ + لـيْ) [پ ، (ب ، خ) اس ، صو] د پیشو د شړلو اواز ، پشـې ، پیشې.

**بلی** :- (بَ + لی) [پ ، اس ، مؤ] د چت چجه.

**بلے** :- (بْ + لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] هغه لرګے چې په ستن یا متهٔ پاس پروت وي.-او وربانديٍ شهتیرونه کښېښولے شي.

**بلې** :- (بَ + لې) [پ ، اس صو] (۱) د خوشۍ اواز (۲) اف ، او ، هو.

**بلـې بلـې**:- (پ، اس صـو) (۱) د خوشـحالۍ اواز ، واه واه ، اهـا اهـا هـا (۲) روښانه ، بلېدونکے.

**بلي پش** :- (بَ + لِيْ + پَ + شْ) [پ (ب ، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : بلي پشـون] د اوني پیشونګړے ، خرپاندے.

**بلېچون** :- (بْ + لې + چُوْ + نْ) [اف : پ (قـاموس) اس ،مذ ،وا ، ج: بلېچوُنونه] مچوغنه ، مچوغونډه ، مچلوغزه ، مخچونه.

**بلېـدل** :- (بَ + لـې + دَ + لْ) [پ ، مـص لا] (۱) اور لګېـدل ، روښـانه کېـدل (۲) ځلکېدل ، پرقېدل ، چنې کېدل.

**بلېدنګ** :- (بَ + لې + دَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ بلېدنه.

**بلېدنه** :- (بَ + لې + دْ + نَه) [پ حمص] (۱) بلېدهٔ ، بلېدنګ ، اور لګېدنـه ، روښانه کېدنه ، (۲) چنې کېدنه ، ځلکېدنه ، پرقېدنه.

**بلېدُونکے** :- (بَ + لې + دَو + ن+کے) [پ ، مص لا] نغښتل ، بلېشل ، په کپړه کښې نغښتل ، د ماشوم نه اوربے تاوول ، ماشوم په اوربي کښې تړل.

**بلېړدلے** :- (بْ + لې + ژْ + دْ + لَے یا بْ + لې + ګْ + دْ + لَے) [اف : پ (قـاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : بلېړدلي] نغښتلے ، په اوربي کښې تړلے.

**بلېـــړدول** :- (بْ + لـې + ژْ + دَ + وَ + لْ یـا بْ + لـې + ګ + دَ +وَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] و ـــ بلېړدل.

تل طفلان د خپلو اوښکو
د ګریوان په اوربي بلېړده (خوشحال)

**بلېـړدولے** :- (بْ + لې + ژْ + دَ + وْ + لَے یا بْ + لې + ګْ + دَ + وْ+ لے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : بلېړدولي] و ـ بلېړدلے

**بلېړدونـه** :- (بْ + لـې + ژ+دَ + وْ + نـه یـا ب + لـې + ګْ + دَ + وْ + نَـه) [اف : پ (قاموس) حمص] نغښتنه ، په اوربي کښې تړنه.

**بلېـدوُونکے** :- (بْ + لې + ژْ + دَ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قـاموس) اس فـا ع ، مذ ، وا ، ج :بلېړدونکي] نغښتونکے ، ماشوم په اوربي کښې تړونکے.

**بلېړدُونکے**:- (بْ + لې + ژْ + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ،وا ، ج : بلېړدونکي] په اوربي کښې تړلے کېدونکے ماشوم.

**بلېسول** :- (بْ + لې + سَ + وَ + لْ) [اف : پ(قاموس) مص مت] لړ شان څهٔ شے یا څوک د چا سره یا د څهٔ شي سره لګول.

**بلېســولے** :- (بْ + لـې + سَ + وْ + لَـے) [اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج : بلېسولي] څهٔ خیز چا سره یاد د څهٔ سره لړ شان لګولے شوے.

**بلېســونګ** :- (بْ + لـې + سَ + وُوْ + نْ + ګ) [اف : پ (قـاموس) حمـص] و ـــ بلېسونه.

**بلېسـونه** :- (بْ + لـې + سَ + وْ + نَـه) [اف : پ (قـاموس) حمـص] څـهٔ خیـز یـا څوک د څهٔ خیز یا د چا سره لړ شان لګونه.

**بلېسوُونکے** :- (بْ + لې + سَ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بلېسوُونکي] څـهٔ خیـز یـا څـوک د څـهٔ خیـز یـا د چـا سـره لـړ شـان لګوُونکے.

**بلېسدل** :- (ب + لې + سې + دْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص ، لا] د څهٔ خیز یا د چا د بل خیز یا د چا سره لړ شان یا په متکي لګېدل.

**بلېسېدلے** :- (بْ + لـې + سې + دْ + لَـے) [اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج : بلېسېدلي] څـهٔ خیز یا څوک د څهٔ خیز یا د چا سره لړ شان یا متکي لګېدلے

**بلېسېدنګ** :- (بْ + لې + سې + دَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ بلېسېدنه

**بلېسېدنه** :- (بْ + لې + سې + دْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱) د څهٔ خیز یا د چا د څهٔ بل خیز یا د چا سره لړ شان یا متکي لګېدنه (۲) تینګ کېدنه.

**بلېسېدونکے** :- (بْ + لې + سې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) مذ ، وا ، ج : بلېسېدُونکي] د څهٔ خیز یا د چا د بل خیز یـا د بـل چا سره لړ شان یا په متکي لګېدنه.

**بلېشل** :- (بْ + لې + شَ + لْ) [پ (ب ، خ) مص مت] و ـ بلېړدل.

**بلېشـلے** :- (بْ + لـې + شْ + لَـے) [پ (ب ، خ) مـف ، مـذ ، وا ، ج : بلېشـلي] و ـــ بلېړدلے

**بلېشنه** :- (بْ + لې + شْ + نَه) [پ (ب ، خ) حمص] و ـ بلېړدنه.

**بلېـک** :- (بْ + لـې + کْ) [انګ ، ص] لُـغ : تـور ، اص : تګـي ، دوکـه ، د غـلا مال.

**ـــ کول** :- (اص) تګي کول ، دوکه کول ، د غلا مال خرڅول.

**بلېـک بـورډ** :- (بْ + لـې + کْ + بـو + رْ + ډْ) [انګ ، اس، مـذ ، وا ، ج: بلېـک بورډونه] تختـه سیاه ، هغـه توره تختـه چې په مدرسو کښـې استاذان شاګردانو ته لیک پرې کوي.

**بلېـک مارکېـټ** :- (بلېـک + مـا + رْ + کـي + ټْ) [انـګ ، اص] پـه غـلا مـال خرڅول، د قانون خلاف تجارت کول.

**بلېـک مېلنګ** :- (بلېـک + مـې + لِ + نْ + ګ) [انـګ ، اص ج د ذاتـي ګټـې وټـې دپاره د بـل چا د پټ راز نـه فائده اوچتـول ، چا تـه د پټ راز ښکـارولو دهمکي ورکول او خپله فائده ترې حاصلول.

**بلېګده** :- (بَ + لې + ګْ + دَه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بلېګدې] شکنجه ، پانه، کاړه.

**بلېمانس** :- (بَ + لـې + مـا + نْ + رَ + سْ) [پ (عـا) ه : بهـلا مـانس ، اس ص ، مذ] و ـــ بله مانس.

**بلېنـده** :- (بْ + لـې + نْ + دَه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج: بلېنـدې] د مالوچو یا د کربوسکو پنډوس.

**بلېنـډه** :- (بْ + لـې + نْ + ډَه) [اف : پ (قـاموس) اس، مـؤ ، وا ، ج : بلېنـډې] د لیتکي یا لیت شعله.

**بم** :- (بْ + مْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مـذ ، وا] (۱) کنـګ ، ګُونګے بُوم ، (ج : بمـان) (۲) خـاموش ، غلـے ، چـپ (۳) یـو قسـم لوبـه چې پـه خاموشۍ سیره کولے شي.

**بم** :- (بْ + مْ) [پ ، اس ، صو] (۱) د څهٔ خیز د الوتو اواز (۲) ژورو اوبـو تـه د کاڼي په ویشتو داسې اواز پیدا کېږي ، (بارودي مواد).

**بــم** :- (بَ + مْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بمونـه] د تـانګې اوږد بـانس چـې پکښې تانګه جوت کولے شي.

**بم** :- (بَ + مْ) [پ ، انګ ، بمب ، اس ، مذ ، وا، ج : بمُونه ، بمینه] ګولـه ، د بارودو نه ډکه د اوسپنې جوړه ګوله چې په چاؤدلو ئې ټکړې لـور پـه لـور خورې شي او تباهي جوړه کړي.

**بـم** :- (بَ + مْ) [فـا ، اس صو ، مذ] (۱) د راګ ، ربـاب ، سـارندې یـا بـاجې اوچت اواز.-(۲) د حیرانتیا اواز.

**په بمو کښې** :- (اص) په مزو کښې ، په خوشحالو کښې ، په اوچتـو پـایو کښـې ، په چرچو کښې.

**په بمو کښې رېږدل** :- (اص) (۱) ډېر اوچت رېږدل ، لوئې خبرې کول (۲) سو - په راز دارانه انداز کښې خبرې کول.

**بمبار** :- (بَ + مْ + با + رْ) [فا تر ، انګ ، بامبر ، اس ، ص ، مذ] (۱) بمونه غورزوونکے ، بمبارې کوونکے (۲) اص - په جرُوت کښې ، په مزه کښې ، په نشه کښې.

**ــــ کېدل** :- (اص) نشه کېدل ، په مزو ګډېدل.

**بمبارې** :- (بَ + مْ + با + رِيْ) [فا تر ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بمبارۍ] د بمونو غورزول ، د توپو يا د جهازونو په ذريعه ګولې ويشتل.

**بمبته** :- (بَ + مْ + بَ + ته) [پ (سو) اس ، مؤ ، وا ، ج : بمبتې] د شفتالو ، الوچې ، خرمانۍ ، اشارې يا مندتې اړوکے.

**بمتۍ** :- (بَ + مْ + تِی) [پ (ګن) اس ، مؤ] وړه غوندې بالاخانه.

**بمبچی** :- (بَ + مْ + بَ + چی) [پ (سو) اس ، مؤ ، ج] د ماشوم په پښو زنګول.

**ــــ کول** :- (سو) اص - ماشوم د لوبو په ډول د هغهٔ د خوشحالولو دپاره په پښو کښېنول او زنګول او بمبچې بمبچې ورسره وئيل.

**بمبر** :- (بَ + مْ + بَ + رْ) [پ (ب ، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : بمبرون] د بمبرې نر.

**بمبره** :- (بَ + مْ + بَ + ره) [پ (ګن + ب ، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : بمبرې] ډمبره ، مچۍ ، ټنډه غالبوزه ، ډمډاره ، غُومبسه.

ګبينهٔ نرۍ مچۍ ډمبکې لرې بمبرې
له يوه دريابه څېڅې مرغچيچې ملغلرې (خوشحال)

**بمبرو ته لاس اچول** :- (ګن) اص - و ــــ بمبرې راکټول.

**بمبرې راکټول** :- (بَ ، خ) اص - په زور ځان ته څوک راپارول ، خامخواه په جګړه پسې ګرځېدل ، بمبرو ته لاس اچول.

**بمبس** :- (بَ + مْ + بُ + سْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] سست ترلے شوے بار ، هغه بار يا ورے چې کلک نهٔ وي ترلے.

**بمبسه** :- (بَ + مْ + بْ + سَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، ج : بمبسې] څانګور بُوټے چې ګڼ ګُور راټوکېږي.

**بمبل** :- (بَ + مْ + بَ + لْ) [پ (ب ، خ) اس ، مذ] (۱) د شاړو يا د جوارو په سر کښې راوتې بمبلۍ (۲) ببر ، تبغ ، څېر.

**بمبل ريږه** :- (اص) ګنه ريږه ، ګُوره ريږه ، ببره ريږه.

**بمبل کوټ** :- (بمبل + کو + ټْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د خاورو قلاګۍ.

**بمبلاکه** :- (بَ + مْ + بْ + لا + که) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بمبلاکې] د دستار شمله.

**بمبلول** :- (بَ + مْ + بَ + لَ + وَ + لْ) [پ ، مص مت] (۱) ببرول ، څېرول ، نېغول ، (۲) توره يا ټوپک اوچتول.

**بمبلۍ** :- (بَ + مْ + بَ + لَی) [پ (سو) اس ، مؤ] و ــــ بمبل.

**ــــ ايستل** :- (سو) اص - د جوارو وږے کول ، د دُرملو يا کهې پخېدل.

**بمبڼ** :- (بَ + مْ + بْ + نْ + ړْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بمبڼان ، بمبڼون (مؤ ، وا : بمبڼه ، ج : بمبڼې)] و ــــ بامبړ.

**بمبو** :- (بَ + مْ + بُوْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا] د اوسپنې نه جوړ هغه نوکدار څيز چې د غلې بورۍ ته ئې ورننه باسي او لږ شان نمونه په کښې بهر ته را اوباسي.

**بمبو** :- (بَ + مْ + بُوْ) [پ ، اس ، ص ، مذ] ډېر بډو ، غټ خېټے.

**بمبوټک** :- (بْ + مْ + بُوْ + ټَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] يو غرئيز بوټے.

**بمبوړې** :- (بْ + مْ + بُوْ + ړِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] ټوقې ، مسخرې ، ملنډې ، ناخول.

**بمبوق** :- (بَ + مْ + بُوْ + قْ) [پ (سو) اس ، مذ] بې عزته ، سپک.

**ــــ کول** :- (سو) اص - (۱) سپکول ، بې عزته کول (۲) لرې کول ، د نوکرۍ نه ايستل.

**بمبوله** :- (بَ + مْ + بُو + لَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بمبولې] ترټه ، انډېرے ، پرېړے ، بمبولے.

**بمبولے** :- (بَ + مْ + بو + لے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بمبولي] و ــــ بمبوله.

**بمبه** :- (بَ + مْ + بَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بمبې] نلکه ، د اوبو پېپ

**ــــ کول** :- اص - د کنځلو په ډول استعمالېږي.

**بمبۍ** :- (بَ + مْ + بَی) [اس ، معر ، مؤ] د هندوستان يو مشهور ښار چې بندر هم دے.

**بمبيرۍ** :- (بَ + مْ + بيْ + رَی) [پ (ګن) اس ، مؤ] و ــــ برېړانک.

**بملۍ** :- (بَ + مْ + لی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] طبله ، ډُوکړه ، دبلې.

**بمول** :- (بَ + مَ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] بمبرې ، غومبسې يا ډمبرې چېړل يا پارول.

**بمُوونکې** :- (بَ + مَ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بمُوونکې] بمبرې ، غومبسې يا ډمبرې راپاروونکې.

**بُمه** :- (بُ + مَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بُمې] نېزه سونګه ، سانګه.

**بمه** :- (بَ + مَ + ه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بمې] سره مچۍ ، ډمبره ، بمبره.

**بن** :- (بْ + نْ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بنې] د يو سړي دوې يا زياتې ښځې د يوې بلې بنې بللې کېږي.

زوے د پلار سره کارونه د غليم کا
لوېه مور ته لکه بنې دي تيارې (خوشحال)

**بن** :- (بَ + نْ) [ه ، اس ، مذ] بڼ ، ځنګل.

**بن** :- (ب + نْ) [ع ، اس ، مذ] زوے ، ولد.

عبدالله بن عمر کړې روايت
چې زامن د مور او پلر کوي زيارت (مولانا عبدالسلام)

**بِنا** :- (بِ + نا) [ع ، اس ، مؤ] بنياد ، اساس ، جړ.

په بنائست بوله بنا د عاشقۍ
که واله د فلک شمع پروانه کا (کاظم خان)

**ــــ کول** :- اص - (۱) بنياد کښېښودل ، اساس کښېښودل (۲) شروع کول ، په څهٔ کار ګوتې پورې کول.

**ــــ کېدل** :- اص - (۱) بنياد کښېښودل ، اساس کښېښودل (۲) شروع کېدل ، په څهٔ کار ګوتې پورې کېدل.

**پنج بِنا** :- (اص) د دين بنيادي پينځهٔ خبرې ، پينځهٔ بِنا ، کلمه توحيد ، نمونځ ، روژه ، زکوٰة او حج پينځهٔ بنا دي.

**پينځهٔ بنا** :- (اص) و ــــ پنج بنا.

دا پينځهٔ بنا د دين دي
چې بيان ئې وکړو ما (رحمان)

**په بِنا** :- (اص) په وجه ، له کبله ، په سبب.

**بنات** :- (بَ + نا + تْ) [پ ، اس ، مذ] و ــــ بانات.

**بناتۍ** :- (بَ + نا + تَی) [پ ، اس ، ص ، مؤ] يو قسم رخت.

**بنارس** :- (بَ + نا + رَ + سْ) [ه ، اس ، معر] د هندوستان يو ښار چې د هندوانو مُتبرک ځاے دے.

**بنارسی** :- (بَ + نا + رْ + سَی) [پ ، اس ، ص ، مؤ] يو قسم قيمتي کپړه

چې اکثر د وادهٔ په موقعه يوه جوړه نيمه ترې جوړولے شي.

**بناړه** :- (بَ + نا + ړهٔ) [اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مؤ] و ـ بلاڼه.

**بناسپتي** :- (بَ + نا + سْ + پَ + تِيْ) [ه ، اس] د ونبو د پاڼو نه جوړ بازاري غوړي.

**بنــاوټ** :- (بَ + نــا + وَ + ټْ) [ه ،اس ، مــذ] (۱) جوړښــت ، (۲) ټګـــي ، جعلسازي.

**بناوټي** :- (بَ + نا + وَ + ټِيْ) [پ ، اس ، ص] (۱) مصنوعي ، (۲) چل ول ، د چا د ګېرولو تابيا.

**بن باس** :- (بَن + با + سْ) [ه ، اس ، ص ، مذ] (۱) په ځنګل کښې استوګنه کول (۲) د ملک نه ويستلے کېدل.

**بنبر** :- (بَ + نْ + بَ + رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بنبرون ، (مؤ ، وا : بنبره ، ج : بنبرې)] و ـ بمبر.

**بنبره** :- (بَ + نْ + بَ + رَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بنبرې] و ـ بمبره.

**بنبل** :- (بَ + نْ + بَ + لْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بنبلُونه] و ـ بمبل.

**بنبولی** :- (بَ + نْ + بو + لی) [پ (ظفر) اس ، مؤ] و ــ بمبولی.

**بنت** :- (ب + نْ + تْ) [ع ، اس ، مؤ ، وا] لُور ، بچۍ.

**بنتانهٔ** :- (بَ + نْ + تا + نَه) [پ (سو) اس ، ص ، مذ ، وا] بنتــوب ، بنتــون ، بنتيا.

**بنتوب** :- (بَ + نْ + تو + بْ) [پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : بنتوبونه] بنتيا ، بنتون ، بنتانهٔ

**بنتون** :- (بَ + نْ + تُو + نْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ،وا ، ج : بنتونونه] بنتيا ، بنتانهٔ ، بنتوب

**بنتيا** :- (بَ + نْ + تْ + يا) [پ ، اس ، ص، مذ ،وا] و ـــ بنتون س

**بنټک** :- (بَ + نْ + ټَ + کْ) [اف : پ (قاموس) مذ] انپلق س

**بنج** :- (بَ + نْ + جْ) [پ ،اس،مذ ، و،ج : بنجونه] د بلوط ونه ، څيړۍ

پـه قيمت کشې به يو شان نهٔ شي جنابه
پــه چنـــدنو کښې که وټوکېږي بنج (جناب کاکاخيل)

**بنجارے** :- (بَ + نْ + جا + رَے) [پ ، ه ، بنجارا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بنجاري يا بنجاريان ، (مؤ ، وا ، ج : بنجارۍ)] (۱) ونجارے سوداګر ، مُنيـارے (۲) مُصلي ، تور مخے.

**بنجخ** :- (بَ + نْ + جْ + خْ) [پ ، اس، مذ ، وا ، ج : بخجخونه (مؤ ، وا : بنجخه ، ج : بنجخې)] (۱) په يو بله کښې ننوتې ښانګې. (۲) يو بوټے.

خپل وېښتهٔ د يار دراز په لطافت کښې
څُوکه کـېږي پـــه عاشق لـکه بنجخه (رحمان)

(۳) پنځ غانيے ، مانجهٔ.

**بنجـر** :- (بَ + نْ + جَ + رْ) [پ ، ه ، ص ، مـذ (مـؤ ، وا : بنجـره ، ج : بنجـرې)] شاړ ، ويران ، غېر آباد ، هغه زمکه چې د کر لايقه نهٔ وي.

**بنجر جديد** :- (اص) هغه زمکه چې څلور کاله پرله پسې فصل په کښې نهٔ وي شوے. دا اصطلاح پټواريان استعمالوي.

**بنجر قديم** :- (اص) هغه زمکه چې د نوي بندوبست پورې کرلې شوې نهٔ وي. دا اصطلاح پټواريان استعمالوي.

**بنجے** :- (بَ + نْ + جَے) [پ (سو) اس ، مـذ ، وا ، ج : بنجي] د جـوارو هغـه وړے چې دانې پکښې کمې وي. ګنجے وړے.

**بنجی** :- (بَ + نْ + جی) [اف : پ (قاموس) اس مؤ] يوه ونه.

**بنځنے** :- (بَ + نْ + دزَ + نَے) [پ ، اس ، ص ، مذ وا ، ج : بنځني] بنځے ، ناسکه ، مېرنے

**بنځوله** :- (بَ + نْ + دزو + لَه) [پ (ب ، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : بنځولي) جاله ، منځوله ، منجاله.

**بنځے** :- (بَ + نْ + دزَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بنځي] ناسکه ، بنځنے ، مېرنے.

**بنچ** :- (بَ + نْ + چْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بنچونه يا بنچينه] د لرګي نه جوړ د کښېناستو دپاره اوږد څيز.

**بنچر** :- (بَ + نْ + چَ + رْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، (مؤ ، وا : بنچه ، ج : بنچرې)] ګډ وډ ، يو بل کښې ننوتے.

**بُنچک** :- (بُ + نْ + چَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] بُنياد ، اصـل ، جرړه ، ريښه ، نسل.

**بنچــه** :- (بَ + نْ + چَــه) [اف ، پ (قـاموس) انـګ : بـنچ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بنچې] (۱) ګُلدسته ، (۲) د لرګو ګېډے.

**بنـد** :- (بَ + نْ + دْ) [فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بندُونـه يـا بندينـه] (۱) د اوبـو د ايسارولو دپاره د خاؤرو او کاڼو پُوله (۲) اندام ، جوړ ، د بدن يوه حصه (۳) قېد (۴) ايسار ، تم (۵) د نظم يوه ټکړه (۶) دم کړې تارونه تعويذونه (۷) طريقه ، تجويز ، ترکيب (۸) خاموش.

ژبه ئې بند ده علقمه هېڅ نه وېل
خو په سترګو ئې اصحابو ته کتل (عبدالسلام)

**ــــ اچول** :- اص. اوبو ته بند ترل ، بند جوړول.

**ــــ ايستل** :- اص. څهٔ تجويز کول ، څهٔ لاره چاره لټول.

**ــــ پرې کول** :- اص. (۱) بند ماتول ، بند ترل (۲) اندام پرې کول.

**ــــ ترل** :- اص . (۱) اوبو تـه بند اچول (۲) د څـه کـار دپـاره بندوبست کول ، د څهٔ معاملې دپاره تجويز جوړول (۳) د بيمارۍ دپاره تعويذ جوړول ، يا تارونه دم کول.

**ــــ خطا کول** :- اص. لار ګودر خطا کول ، بې سوچه کول ، وار پار خطا کول.

**ــــ خطا کېدل** :- مح. لار ګودر خطا کېدل ، وار پار خطا کېدل ، بې سوچه کېدل.

**ــــ خلاصول** :- مح. د ايسارو اوبو لار ازادول ، د بند نه اوبهٔ په يوه لار روانول.

**ــــ ړدل** :- مح. بند ترل ، بندوبست کول.

کـه هــر څو مې صبر زهــد د پند بــند ړدي
چې په دوه سترګو زهٔ خداے ته بحر مواج کړم (حميد)

**ــــ سازول** :- مح. (۱) بند جوړول ، بند ترل (۲) بندوبست کول.

**ــــ شلېدل** :- مح. (۱) ګنډه يا غُوټه شلېدل (۲) د عمر وار تېرېدل ، زړېدل. (۳) د اوبو بند ماتېدل.

**ــــ کښېناستل** :- مح. پټ کښېناستل.

**ــــ کول** :- مح (۱) بندول ، ايسارول (۲) بندوبست کول ، تابيا کول.

**ــــ کېدل** :- مح . (۱) بند بېدل ، ايسارېدل ، قېد بېدل (۲) د اودس ماتي نهٔ راتلل.

**ــــ ماتول** :- مح. بند پرې کول ، بند نړول .

**په بند پوهول** :- (اص) په چل پوهول ، په مطلب پوهه کول.

**په بند پوهېدل** :- (اص) په چل پوهېدل ، په مطلب رسېدل.

**د بند وخوړ** :- (اص) د جوړونو مرض.

**د خبرې څهٔ بند کول** :- (اص) څهٔ فکر کول ، د يوې خبرې د بندېز بندوبست کول.

**بند بنا** :- (بند + ب + نـا) [پ ، اس ، مذ] بنـدوبست ، تجـويـز ، مشـوره ، بود بې بود.

**بند بنا کول** :- (اص) بندوبست کول ، تجويز کول ، مشوره کول.

**په بند بنا نهٔ پوهېدل** :- (مح) په سر لم نهٔ پوهېدل ، د څهٔ چل يا تجويز په ذهن کښې نهٔ راتلل ، حېرانېدل.

**بند بند** :- (بَند + بند) [پ ، اس ، مذ] (۱) ايسار ايسار ، پېنـه نيـولے ،

(۲) اندام اندام ، ټُکرې ټُکرې.

چــې د عـــشق په توره وژۀ شم عزیزېږم
قیمت زیات واخلي گنې چې ئې بند بند کا (عبدالقادر ختک)

ـــــ **کول**:-اص. اندام اندام کول. ټکرې ټکرې کول، په اندامونو بېلول.

ـــــ **کېدل** :- اص. (۱) اندام اندام کېدل ، ټُکرې ټکرې کېدل ، په اندامونو بېلېدل (۲) ایسار ایسار کېدل.

ـــــ **نیول** :- اص . په سخته بیمارۍ بیمارېدل ، د بادو په مرض بیمارېدل ، د بدن هر یو جوړ خوږېدل.

**بند په بند** :- (اص) اندام په اندام ، ټکړه په ټکړه ، حصه په حصه ، برخه په برخه.

بند په بند ئې نظر کړه خوند ئې اخله
د دانا د خـــولې کـلام لکه گنې دے (خوشحال)

ـــــ **بېلول** :- اص . اندام په اندام بېلول یا جدا کول ، ټکرې ټکرې کول ، بند په بند پرې کول.

ـــــ **بېلېدل** :- اص. اندام په اندام بېلېدل یا جدا کېدل ، ټکرې ټکرې کېدل ، بند په بند پرې کېدل.

ـــــ **پرې کول** :- اص. و ـــــ بند په بند بېلول.

ـــــ **پرې کېدل** :- اص. و ـــــ بند په بند بېلېدل.

ـــــ **تړل** :- اص. په اندامونو تړل ، ټینګ تړل ، په عشق کښې راګېرول

ـــــ **جدا کول** :- اص. و ـــــ بند په بند بېلول.

که زما په مرګ دې زړۀ دے تېغ راواخله
د قصاب غوندې مې بند په بند جدا کا (خوشحال)

ـــــ **جدا کېدل** :- اص. و ـــــ بند په بند بېلېدل.

ـــــ **ویل** :- اص. دیو نظم یوه یوه ټکړه لوستل یا ویل.

په وېل کښې یو پرېشان وي
بـــل وېـل کـــا بند په بند (خوشحال)

**بنـد خانـه** :- (بَنـد + خا+نـه) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بنـدخانې] بندیخانـه ، جلېخانه، قېد خانه.

لاتر کومه به د نفس په قېد خانه ئې
اے خواجه محـمـده پاڅه قلندر شه

**بنــدرګاه** :- (بَ + نْ + دَ + رْ + ګـا + هْ) [فـا ، اس مـؤ ، وا] بنـدر ، د اوبـو جهازونو اډه یا ځاے

**بندړ** :- (بَ + نْ + دَ + ړْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بندؤونه] لوظ ، قول ، وعده .

**بندش** :- (بَ + نْ + دِ + شْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج بندشونه] بندېز ، بند کېدنه.

**بنـدک** :- (بَ + نْ + دَ + کْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] د شیشـتو یـا بېړو لوبه.

**بندکه** :- (بَ + نْ + دْ + که) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بندکې] څپلۍ ، کېږۍ.

**بندکے**:- (بَ +نْ +دَ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج :بندکي ، بندکیان] وربل ، د زنانۀ تندي وؤدلې وېښتۀ، بندېزه.

**بندکے** :- (بَ + نْ + دَ + کے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] یو قسم واښۀ چې اکثر د اوبو په غاړه ولاړ وي.

**بنـد ګـوره**:- (بَ +نْ +ګـو+رَه) [پ (ب ، خ) اس، مـؤ ، وا ، ج: بنـدګورې] هغه زمکه چې د باراني اوبو په خوړ خړوبېږي. اکثر بندګوره زمکه بنۀ فصل کوي

**بندګي**:- (بَ + نْ +دَ+ګِيْ) [فا ، اس ، مـؤ ،وا ، ج: بندګۍ] (۱) عبادت ، حکم ، مننه ، تابعداري.

چې د سروې بـندګي دې قامت وکړه
نۀ بـه هم بنده د سروې ته سوسن کړم (ابوالقاسم)

(۲) خدمت ، غلامي ، مرئیتوب.

**بنـدڼ** :- (بَ + نْ + دَ + نْ + ڼْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] تـړون ، فېصـله ، ټینګه ، بندوبست ،بنډار.

**بنـدوکے** :- (بَ + نْ + دُوْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج: بندُوکي] (۱) کنجک ، کلالے ، د وېښتو ول (۲) ورکوټے بند .

**بند والے** :- (بَند + وا + لَے) [پ ، اس ، مذ] بندېز ، بند کېدنه.

**بندو بس** :- (بَ + نْ + دو + بَ + سْ) [پ (عا) فا : بندوبست ، اس ، مذ ، وا ، ج : بندوبسونه ، بندوبسینه] (۱) بندوبست ، انتظام زېرمه ،

څوک چې لاس په سر کا له دنیا د بندوبسه
نوش به ستا د سرو لبانو جام کا هله پسه (عبدالعظیم)

(۲) د زمکې د حد بندۍ او مالیې ټاکلو انتظام (۳) تدبیر ، تجویز .

**بندوبســـت** :- (بَ + نْ + دو +بَ + سْ + تْ) [فـــا ، اس ، مـــذ ، وا ، ج : بندوبستونه، بندوبستینه] و ـــــ بندوبس.

**بندوبســي** :- (بَ + نْ + دو +بَ + سـيْ) [پ ، اس ، مـذ ، مـؤ] بندوبسـتي ، انتظامي ، انتظام کوُونکے.

**بنـدوخ** :- (بَ + نْ + دُوْ + خْ) [پ ، ع ، بنـدوق ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بندوخونـه] ټوپک ، ټیپاک .

**بندوق** :- (بَ + نْ + دُوْ + قْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : بندوقونه] بندوخ ، ټوپک .

**بندول** :- (بَ + نْ + دَ +وُ + لْ) [پ ، مص مت] (۱) ایسارول ، تم کول ، (۲) قېدول.

**بندونګ**:- (بَ + نْ + دَ + وَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] او ـ بندونه.

**بندُونـه** :- (بَ + نْ + دُوْ + نـه) [پ ، اس ، مـذ ، ج] (۱) تعویذونـه ، کـوډې، څانبتونه (۲) ولونه ، غوټې

په خپل ښکار پسې به څرنګ باز الوزي
چـــې بازدار ئې پـــسې وائۀ کا بندونه (خوشحال)

(۳) د اوبو د ایسارولو پولې.

ـــــ **تړل**:-اص ، د اوبو د ایسارولو دپاره پولې اچول (۲) بندوبسونه کول ، د بچ کونې تجویزونه جوړول.

ـــــ **کول**:-اص (۱) څانبتونه ، تعویذونه کول ،(۲) تجویزونه کول.

**بندونه** :- (بَ + نْ + دَ + وْ + نَه) [پ ، حمص] (۱) ایسارونه ، تم کونه (۲) قېدونه.

**بنـــدوُونکے** :- (بَ + نْ + دَ + وُو+ نْ + کَـے) [پ ، اس ، فـا ، ع ، مــذ ، وا ،ج: بندوُونکي] (۱) ایساروُونکے، تم کوُونکے (۲) قېدوُونکے.

**بنده** :- (بَ + نْ + دَه) [فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بندګان ، بندګون] (۱) د خداے تعالیٰ حکم منونکے ، تابعدار ، فرمـانبردار (۲) خدمتګار ، مریئے.

زۀ رحمان د خداے بندي وخدمتګار یم
چې بنده وخدمتګار وي څۀ به خوب کا (رحمان)

**بنـــدي** :- (بَ + نْ + دِيْ) [پ ، اس ، مـــذ ، وا ، ج : بنـــدیان] قېـــدي ، بندیوان ، تړلے ، ګېر .

بندیان به خداے له بنده خلاص کړي
غمازه ستا بې ورخه کړه مې ژړوینه (ټپه)

ـــــ **کول**:-اص ، قېدول ، بندیوان کول ، خوندي کول.

ـــــ **کېدل**:-اص ، قېدېدل ، بندیوان کېدل، خوندي کېدل.

ازادي تـــر دا پـــه هورتـــه بله نشته
چې بندي د یار د زلفو په زنځیر یم (رحمان)

**بندۍ**:- (بَ + نْ + دَۍ) [پ ، اس ، مؤ ] (۱) اُوږی ، د غـاړې کـالے یـا زیـور (۲)طوق (۳) هغه رنګین تارونه چې د کپړې تانونه پرې تړلي وي.

**بندیخانه**:- (بَندي + خا + نَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بندیخانې] بندخانه ، قیدخانه ، زندان ، جیل.

**بندیـدل**:- (بَ + نْ + دي + دَ + لْ) [پ ، مـص لا] (۱) قیدیـدل ، بنـدي کیدل ، بندیوان کیدل (۲) ایساریدل ، تم کیدل (۳) د مرض په وجه حاجت ته نهٔ کینبناستل.

**بندیدنـه**:- (بَ + نْ + دي +دْ + نَـه) [پ ، حمـص ] (۱) قیدیدنـه ، بنـدي کیدنـه ، بندیدهٔ (۲) ایساریدنه ، تم کیدنـه ، (۳) د مـرض پـه وجـه حاجت ته نهٔ کینبناستنه.

**بندیدُونکے**:- (بَ + نْ + دي + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: بندیدُونکي] (۱) قیدیدونکے،بندي کیدونکے (۲) ایساریدونکے ، تم کیدونکے.

**بندیدهٔ**:- (بَ + نْ + دي + دهٔ) [پ ، حمص] و ـــ بندیدنه.

**بنـدیز**:- (بَ + نْ + دي + زْ) [پ ، اس ،مـذ ،وا ،ج : بندیزونـه ] (۱) قیـد (۲) بندش ، رکاوټ ، چې اجازت ئې نهٔ وي ، ممانعت.

**بندیزه**:- (بَ+نْ+دي + زَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] و ـ بندکے.

**بنـــدیوان**:- (بَ + نْ + دي + وا + نْ) [پ ، اس ، ص ، مـــذ ، وا ، (مـــؤ ، وا: بندیوانه، ج: بندیوانې) ] بندي ، قیدي ، تړلے ، ګیر.

یـــوه ورځ بـــه بـــــندیـــوان د باز په څیر شې
چې د شپه او ورځ خوراک شوې د قام غوښې (حمید)

**ـــــ کول**:-اص ـ بندي کول ، قید کول.

**ـــــ کیدل**:-اص بندي کیدل ، قید کیدل.

**بنډ**:- (بَ + نْ + ډْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بنډونه] (۱) تاوان. ناغه (۲) دوري ، هغه اوږهٔ چې پیټۍ کښې د پخلي په وخت اچولے شي.

**بنـډار**:- (بَ + نْ + ډا + رْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بنډارونـه ] (۱) بنـډاره ، د سازیانو او مجلسیانو ټولے ، د بلوچستان د بنډار مجلس ډیر مشـهور دے. (۲) وران او شاړ کوهے چې خولهٔ ئې لویه وي.

**ـــــ کول**:-اص ـ د ساز سره مجلس کول.

**ـــــ کیدل**:-اص ـ د ساز سره مجلس کیدل .

**بنډاره**:- (بَ + نْ + ډا + رَه) [پ ، اس ، مؤ ] و ـــ بنډار.

**بنډارے**:- (بَ + نْ + ډا + رَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: بنډاران ] مجلسي ، ګپي ، هغه څوک چې مجلس ګرمولے شي.

**بنډاریدل**:- (بَ + نْ + ډا + ري + دَ + لْ) [اف ، پ (قاموس) مص لا] مجلس تـه راغونډیدل یا ګردیدل.

**بنډس**:- (بْ + نْ + دْ +سْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د ډانډت ژی.

**بنډل**:- (بَ + دْ + ډَ + لْ) [انګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بنډلونـه ، بنډلې، بنډلینه ] بسته ، پیکټ.

**بنډل اي**:- (اص) و ـــ بسته الف.

**بنډل بي**:- (اص) و ـــ بسته بي.

**بنډه**:- (بَ + نْ + ډَه) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج : بنډې] (۱) حصه ، بخره ، برخه (۲) مکر ، فریب ، دوکه ، ټګي ، چل ول.

**د چا برخه بنډه کول**:- (اف) مح ـ څوک یادول ، چاته برخه ورکول.

**بنډۍ**:- (بَ +نْ+ ډۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] د اُوبو خولهٔ ، وَرخ.

**بِنـډۍ**:- (بِ + نْ + ډۍ) [پ ، ه : بهنـــڈی ،اس ، مـؤ ] یـو قسـم سبزي چې د ګوتو په شان اوږده وي او لړ ببره شان وي.

**بنـډے**:- (بَ + نْ + ډَے) [اف : پ (قـاموس) اس، مـذ ، وا ، ج : بنـډي] (۱) حصه، ټولے (۲) غټ لرګے چې په مېنځ کښې پرې کړے شوے وي (۳) د کوهي د څرخ سره متصل لرګے (۴) څپړے ، د سپارې کُنده.

**بنـډے**:- (بَ + نْ + ډَے) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بنـډي] انـډے ، د مړي لاش.

**بنډیل**:- (بَ + نْ + ډِيْ + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] منډیل ، منډوبل ، غټه پګړۍ.

**بنـزے**:- (بُ + نْ + زَے) [اف : پ (قاموس) اس مذ ، وا ، ج : بُنـزي، بنزیان ( مؤ ، وا: بنزۍ ، ج : بُنزیانې)] و ـــ بنځے.

**بنسټ**:- (بَ + نْ + سَ + ټْ) [اف : پ (قاموس) اس،مذ ، وا] بنیاد ، بیخ ، جړه وبیخ.

**بُنسټ**:- (بُ + نْ + سَ + ټْ) [پ ، اس ، مذ ، وا] بنیاد ، بیخ ، جرړه.

**بنسُور**:-(بَ+نْ+سُوْ+ رْ) [پ (مر) اس ، مذ ] بنسیر ، د ایوې کُنده.

**بنسیر**:- (بَ+نْ + سيْ + رْ) [پ (بنو) اس ، مذ ، وا] د ایوې کُنده ، بنسُور.

**بنفشه**:- (ب +نَ + فَ + شَه) [فا ، اس ، مؤ ] یو غرئیز بوټے چې د دارو په ډول استعمالیږي.

**بنـک**:- (بَ + نْ + کْ) [انګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بنکونـه ، بنکینـه] د پیسـو ټکو جمع کولو ځاے ،بینک.

**بنکۍ**:-(بْ + نْ +کۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] وړه بنۍ ، ګوډکۍ.

**بنکے**:- (بْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د مېوې نه ډک رومال یا دسمال چې خوانبې ئې زُوم ته ورکوي.

**بنګ**:- (بْ + نْ + ګْ) [پ ، اس ، صو ، مذ] دمچانو او ډمبرو یا غومبسو د الوتو اواز ، بنګا ، بنا ، بنهار.

**بنـګ**:- (بَ + نْ + ګْ) [پ ، ه : بهنـګ، اس ، مـذ ، وا ، (مؤ ، ج : بنګې] یـو بوټے چې د نشې دپاره په چیلم کښې څښلے شي ـ او ځینې خلق ئې وټکوي ـ شربت ترې نه جوړ کړي بیا ئې څښي ـ بنګه.

**بنګ بوزه کول**:- مح ـ فضول خرڅ کول ، په نشو او په عیشو کارونو مال دوړه کول

**بنګا**:- (بْ + نْ + ګا) [اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مذ ، وا : ج : بنګاوې] و ـ بنګ

**بنګـال**:- (بَ + نْ + ګـا + لْ) [ه ، اس ، معرفـه ، مـذ ] بنګالـه ، د بنګالیـانو وطـن بنګله،بنګله دیش.

**د بنګالي جادو**:- (اص) (۱) د بنګال جادو کوُونکے (۲) ټګ.

**بنګاله**:- (بَ + نْ + ګا + لَه) [پ ، اس ، معرفه ، مؤ] و ـ بنګال.

**بنګالي**:- (بَ+نْ + ګا + لِيْ) [ه ، اس ، مؤ ] (۱) د بنګالیانو ژبه بنګله (۲) مذ ـ د بنګال اوسیدونکے .

**بنګـالے**:- (بَ + نْ + ګـا + لَـے) [پ ،اس ، مـذ ، وا ، ج : بنګالیـان، (مـؤ ، وا: بنګالۍ) ] د بنګال اوسیدُونکے.

**بنګـالۍ سندرې**:- (بَ + نْ + ګـا + لـۍ + سَ + نْ + دَ + رې) [پ ، اس معرفـه ، مؤ ] د قاضي نذرالاسلام د بنګالي نظمونو پښتو منظومه ترجمه چې په پښتو اکېډیمي کښې چاپ شوې ده.

**بنګتـۍ**:- (بَ + نْ + ګَ + تـۍ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] (۱) یـوه ورکـوټې شان مرغۍ چې اکثر ګلونه خوري (۲) د ماشومانو یوه لوبه.

**بنګـړه**:- (بَ + نْ + ګَ + ړَه) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بنګـړې] نخا ، یـو قسـم ګډاد ، دریس،اتڼ،غره.

**بنګړه**:- (بَ + نْ + ګْ + ړَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] وړانګه ، شُعله.

**ـــــ اچول**:- (اص) (۱) د بنګړې ګډا کول ، بنګړه تودول ، (۲) ځان ښـئیل ، ځان منجول ، په څهٔ کښې ځان ورګډول.

**بنګـړے**:- (بَ + نْ + ګْ + ړَے) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بنګـړي] د لاس کـالے ، اکثر د شیشې ، پلاسټکو ، سرو ، سپینو زرو وغیره نه جوړیږي.

**بنګړي اچول**:- (مح) (۱) بنګړي په لاسو کول (۲) کورکښېناستل ، د نرتوب

کار نهٔ کول.

**بنګړیتــه** :- (بَ + نْ +ګْ + ړِي + تَــه) [اف : پ (قــاموس) اس ، مــؤ ، وا ، ج : بنګړیتې] ټیپر ، منګړیته ، شلغم.

**بنګړیچه** :- (بَ + نْ + ګْ + ړِيْ + چَه) [اف : پ (قاموس) اس مؤ] بنګي خانه ، ساقي خانه ، د بګیانو ځای.

**بنګړیمار** :- (بَ + نْ + ګْ + ړِيْ + مَا + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یوه لویه.

**بنګړیــوال** :- (بَ + نْ + ګْ + ړِيْ + وا + لْ) [پ ، اس ، مــذ ، وا ، ج: بنګړیــوالان (مؤ ، وا : بنګړیواله ، ج : بنګړیوالې] بنګړي خرڅوُونکی.

**بنګ سُوټی** :- (بَ + نْ + ګْ +سُو+ټَی) [پ، اس، مؤ] د بنګومېده کولو لرګی.

**بــنګښ** :- (بَ + نْ + ګْ + ش + یـا بَ + نْ + ګَ + خْ) [پ ، اس ، معرفـه ، مـذ ، (مؤ ، وا : بنګښــه ، ج : بنګښــې] د پښــتنو د یوې قبیلې نوم ، بنګښ د کوهاټ په ضلع کښې اباد دي.

**بنګک** :- (بَ + نْ + ګَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو خاردار بـوټی چې سرې دانې کوي.

**بنګله** :- (بَ + نْ + ګْ + لَه) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بنګلې] (۱) پوخ او ښائسته جوړ کور (۲) بنوڅي بالاخانې ته بنګله وائي.

**بنګله** :- (بَ + نْ + ګْ + لَه) [بنګ : اس ، معرفه ، مؤ] بنګالي ، بنګالۍ ژبه.

**بنګن** :- (بْ + نْ + ګَ + نْ) [اف (قــاموس) اس ، ص ، مـذ] هغـه څوک چې پـه پوزو کښې خبرې کوي.ـ خُوځُونی.ـ ګُوګُونی.ـ بنګن.

**بنګورے** :- (بَ + نْ + ګو+رَے) [اف : پ (قــاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: بنګـوري] بنګوړې ،بنګېل ، بنګېلے ، تښتېدلے مرږ.

**بنګوړک** :-(بَ+نْ+ګو + ړَ+کْ) [پ ،اس،مذ (مؤ ، وا: بنګوړکه، ج: بنګوړکې)] توربت ، فال ګر ، هغه څوک چې لاسونه ګوري او د قسمت حال بیانوي.

**بنګوړي** :- (بَ+ نْ +ګـو + رَي) [اف : پ (قــاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: بنګـوړي] و ـــــ بنګوړے.

**بنګول** :- (بَ + نْ + ګَ + وَ + لْ) [پ ، مص ، مت] (۱) ژړول ، پـه بنګـا سـر کـول (۲) مچان بنوؤل.

**بنګوله** :- (بَ +نْ+ ګو+لَه) [اف : پ (قاموس) اس ص] بې خبر ، ناپوهه.

**بنګولۍ** :- (بَ + نْ + ګو + لۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د ماشومانو یوه لویه چې دوه ماشومان لاسونه سره اونیسي او دریم د دوي په لاسونو کښېني.

**بنګونګ** :- (بْ + نْ + ګْ + وَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ بنګونه.

**بنګونه** :- (بْ + نْ + ګْ + وُ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] ژړونه بنوؤنه.

**بنګوُونکے** :- (بْ + نْ + ګْ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قــاموس) اس ، فـا ع مـذ ، وا ، ج : بنګوُونکي] ژړوُونکے ، بنوُونکے.

**بنګوهي** :- (بَ + نْ + ګو + هي) [اف : پ (قــاموس) اس ، مـؤ] اډي ، بغـوتي ، د غم او فکر نه د غاړې پړسېدل.ـ سرهٔ مخه.

**بنګه** :- (بَ + نْ + ګَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بنګې] و ـــ بنګ.

**بُنګه** :-(بُ+ نْ +ګـه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بُنګې] (۱) میـراث ، (۲) بونګـه ، رشوت ، اکثر دا ټکے د بډې سره یو ځاے راځي لکه بډې بُنګه.

**بنګي** :- (بَ+نْ+ګيْ) [پ ، ه : بهنګی ، اس ، مذ ، وا ، ج : بنګیان (مؤ ، وا: بنګڼه ، ج : بنګڼې] (۱) د بنګو عملي ، بنګ څښونکے ، (۲) چُوړے ، خاکروب.

**بنګي چرسي** :- (اص) (۱) هغه څوک چې د بنګو او چرسو نشـه کـوي (۲) بدعمله (۳) لُوچه ، بې اتباره سړے.

**بنګــي خېــل** :- (بَ + نْ + ګـي + خـې + لْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : (مـؤ ، وا: بنګي خېله ، ج : بنګي خېلې] د خټکو د قبیلې یو شاخ.

**بنګېدل** :- (بَ + نْ + ګې + دَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] ژړل بنېدل.

**بنګېدلے** :- (بَ + نْ+ ګې + دْ + لے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، مو ، وا ، ج : بنګېدلي] ژړېدلے ، بنېدلے.

**بنګېدُونکے** :- (بَ + نْ + ګې + دُوْ+ نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بنګېدونکي] ژړېدونکے ، بنېدُونکے.

**بنګېدنه** :-(بَ + نْ + ګې + دْ +نَـه) [اف : پ (قـاموس) حمـص] ژړېدنـه ، بنېدنه، بنګېدنه.

**بنګېدهٔ** :- (بَ + نْ + ګې+دهٔ) [اف،په (قاموس) حمص] و ـ بنګېدنه.

**بنګېل** :- (بَ + نْ + ګې + لْ) [پ ، (ب ، خ) اس ، مـذ ، وا (مـؤ ، وا: بنګېلـه ، ج : بنګېلې)] و ـــــ بنګوړي.

**بنوڅواله** :- (بَ + نو + څْس + وا + لَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: بنوڅوالې] (۱) د بنوں سره تعلق لرونکے څیز (۲) د بنوڅو د قبیلې دستوره (۳) د بنوڅو ژبه.

**بنوڅے** :- (بَ+ نو + څْسَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بنوڅي (مؤ : وا ، ج : بنوڅې)] (۱) بنیڅائے ، د بنوں اوسېدونکے ، (۲) د بنوڅو د قبیلې سره تعلق لرونکے.

**بنوڅۍ** :- (بَ + نو + څْسی) [پ ، (بنو) اس ، ص ، مؤ] (۱) د بنوڅـو ژبـه (۲) د بنوں سره تعلق لرونکے څیز لکه بنوڅۍ مساله وغېره.

**بنوښ** :- (بِ + نَو + شْ یـا خْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: بنوښان] یو قسم ونه چې په فارسۍ کښې شنګ ورته وائي.

**بنو** :-(بَ + نُوںْ) [پ ، اس ، معرفه ، مذ ] د پښتنو د سیمې یو ښار.

**بني** :- (بَ + نيْ) [پ (بنو) اس ، مذ] و ـــــ بنوں.

**بني ګل** :- (بَ + نيْ + ګُ + لْ) [پ (بنو) اس ، ص ، مذ] بنوڅي د ډېرې مینې بنوں ښار ته بني ګل وائي.

**بَنــی** :- (بَ + نَــی) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج] د لوهـار بنــۍ ، د څرمنــې هغــه ګوډے چې لوهاران خپل دوکان پرې ګرموي.

**په بنۍ کښې باد ننوتل** :- (اص) ډېر خوارېدل ، لُوڅ لغړ کېدل.

**په بنۍ کښې باد کښېوتل** :- (اص) زیات خوارېدل.

**بنیــاد** :- (بُ +نْ + یـا + دْ) [فـا ، ع : بنـاء ، اس ، مـذ ، وا ، ج: بنیادونـه] ویـخ ، اساس ، جړ ، اصل ، جړه.

ـــــ **ایستل**: -اص ، بیخ ایستل ، جړې ایستل ، تباه کول ، بربادول بېخي ختمول.

ـــــ **خوځول**: -اص ، بنیاد ړچول ، ویخ کمزورے کول.

ـــــ **خوځېدل**: -اص ، ویخ کمزورې کېدل ، بُنیاد ړچېدل.

ـــــ **ړچول**: -اص ، و ـــــ بنیاد خوځول.

ـــــ **ړچېدل**: -اص ،و ـــــ بنیاد خوځېدل.

ـــــ **سستول**: -اص ، ویخ کمزورے کول.

ـــــ **سستېدل**: -اص ،ویخ کمزورے کېدل.

ـــــ **کښېښودل**: -اص ،شروع کول ، په څهٔ کار لاس پورې کول ، بناء کول.

ـــــ **وکښل**: -اص ، جـړه ایسـتل ، بیـخ بنیـاد اوکـاږل ، تبـاه کـول ، بربـادول ، بېخي لرې کول ، مړول ، ټول ټبر ختمول ، ذات ذریات ختمـول ، د بنیـاده ایستل.

**د بنیاده ایستل** :- (اص) و ـــــ بنیاد وکښل.

**بني ادم** :- (بَ + نيْ + آ + دَ + مْ) [ع ، اس ، مذ ] و ـــ بنیادم.

**بنیادم** :-(بَ + نْ + یا + دَ + مْ) [پ ، ع: بني آدم ، اس ، مذ ، وا ، ج: بنیادمان ، (مؤ ، وا : بنیادمه ، ج : بنیادمې] انسان ، سړے ، د آدم علیه السلام اولاد.

**بنیادمتوب** :-(بَ + نْ + یا + دَ + مْ + تو + بْ) [پ ، اس ، مذ] سړیتوب ، انسانیت.

**بُنیادي** :- (بُ + نْ + یا + دِيْ) [پ ، ص] (۱) ابتدائي ، د شروع نه.ـ (۲) اساسي پخه ، اصلي (۳) اصیل.

**بنــي اســرائیل** :- (بَ + نــيْ + ا + سْ + را + ئــيْ + لْ) [ع ، اس ، مـذ ] د یعقـوب علیه السلام اولاد ، یهودیان ،

**بنیــامین** :- (بِ + نْ + یـا + مِـيْ + نْ) [ع ، اس معرفـه ، مـذ] (۱) د حضرت

یعقوب علیه السلام زوے او د حضرت یوسف علیه السلام سکه
ورور (۲) یو عام نوم

**بنیان** :- (بَ+نْ+یا+نْ) [پ، (ب، خ) اس، مذ، وا، ج: بنیانونه] بنین، د قمیص لاندې د اغوستلو زبر جامه.

**بُنېر**:- (بُ+نې+رْ) [پ، اس، معرفه، مذ] د پښتنو د یوې علاقې نوم.

**دبُنېر بابا** :- (اص) پیر بابا چې نوم ئې سیدعلي ترمذي ؒ ؤ او په بُنېر کښې ئې زیارت دے.

**بُنېروال** :- (بُ+نې+رْ+وا+لْ) [پ، اس، ص، مذ، وا، ج (مؤ، وا: بُنېر واله، ج: بنېر والې)] د بُنېر اوسېدونکے.

**بنېره** :- (بَ+نې+رَه) [پ، اس، مؤ، وا، ج: بنېرې] د دیوال سر ماتے.

**ــــ تړل**:-اص، بنېره جوړول، د دیوال سرماتے کول.

**ــــ جوړول**:-اص، وــــ بنېره تړل.

**بُنېرے** :- (بُ+نې+رَے) [پ، اس، ص، مذ، وا، ج: بُنېري (مؤ: بُنېرې)] د بُنېر اوسېدونکے، بُنېر وال.

**بنیر** :- (بْ+نِيْ+رْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] اوچ وابنۀ.

**بنین** :- (بَ+نِي+نْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: بنېنُونه] و ــ بنیان.

**بڼ** :- (بَ+نْ+ڼْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: بڼونه] بن، ځنګل.

**بڼ** :- (بْ+نْ+ڼْ) [پ، اس، صو] د مچ یا ډمبرې اواز.

**بڼا** :- (بْ+نْ+ڼا) [پ، اس، صو، مذ] بڼهار، د مچانو پرله پسې اواز.

**بڼاو** :- (بْ+نْ+ڼا+وْ) [اف: پ (قاموس) ص] ښکلے، ډولے، بنائسته، شوشته.

**ــــ کول**:-اص.بڼاوول، هار سنګار جوړول.

**ــــ کېدل**:-اص.هار سنګار کېدل.

**بڼاوول** :- (بَ+ڼا+وَ+وْ+لْ) [اف: پ (قاموس) مص مت] بڼاؤ کول، هار سنګار جوړول، ځان ډولے کول.

**بڼاوُونکے** :- (بَ+ڼا+وُوْ+نْ+کَے) [اف: پ (قاموس) اس، فاع مذ، وا، ج: بڼاوُونکي] هار سنګار کوُونکے، ډولے کوُونکے.

**بڼاوونه** :- (بَ+ڼا+وَ+وْ+نَه) [اف: پ (قاموس) حمص] هار سنګار کونه، ځان ډولے کونه.

**بڼ بڼ** :- (بَ+ڼْ+بَ+ڼْ) [پ، اس، صو، مذ] بڼهار، بڼا، د مچانو پرله پسې اواز

**ــــ جوړېدل**:-اص.شور زوږ جوړېدل، په مجلس کښې ګُور ګُور کېدل، بڼ بڼ کېدل.

**ــــ جوړول**:-اص.شور زوږ کول یا جوړول، په مجلس کښې ګُور ګُور کول، بڼ بڼ کول.

**ــــ کول**:-اص.وــــ بڼ بڼ جوړول.

**ــــ کېدل**:-اص.وــــ بڼ بڼ جوړېدل.

**بڼ ژون** :- (بَ+ڼ+ژُوْ+نْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] و ــ بڼېږ.

**بڼ سترګ** :- (بَ+ڼ+سْ+تَ+رْ+ګي) [اف: پ (قاموس) اس ص، مذ، وا، ج: بڼ سترګي] هغه څوک چې د سترګو نظر ئې ښۀ نۀ لګي.

**بڼکه** :- (بَ+ڼَ+کَه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: بڼکې] باغیچه، ورکوټے باغ.

**بڼکه** :- (بْ+ڼَ+کـه) [اف: پ (قاموس) اس تصغیر، مؤ، وا، ج: بڼکې] ورکوټے بڼه.

**ــــ په سر کښې ور اېښودل**:-اف.مح.څوک اوچ په اوچه لوے سرے جوړول، د وزر نه غر جوړول.

**ــــ شکول**:-اف.اص (۱) بڼې یا پخې ایستل (۲) چاته تکلیف رسول

**یاغي بڼکه ځنې کښل** :- (اف) مح.(۱) د چا ایل کول (۲) څوک د لوئي او بډائي نه راغورزول.

**بڼکې بڼکې کول** :- (اف) اص.د چا جامې څیرې ویرې کول.

**بڼکې توئېدل** :- (اف) اص.د مارغۀ بڼې یا پخې غورزول.

**بڼکې ځنې کښل** :- (اف) اص.(۱) بڼکې ایستل، پخې ایستل (۲) د چا ایل کول (۳) د چا د بډائي او لوے ولي نه راغورزول، څوک بې عزته کول.

**بڼکې سره شکول** :- (اف) مح.(۱) په جنګ کښې د یو بل نه جامې شلول یا څیرې کول (۲) یو بل ته بیهوده او خرابې خبرې کول.

**پر بڼکو راتلل** :- (اف) مح.د مرغۍ بڼې یا پخې کول، د مرغۍ لوئېدل.

**بُڼکے** :- (بُ+نْ+ړْ+کَے) [اف: پ (قاموس) اس، صو، مذ] (۱) بڼا، بڼهار، (۲) ورو خبرې.

**بڼ ګر** :- (بَ+ڼ+ګْ+رْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا] باغوان مالي، باغبان، بڼ وال، بڼې.

**بڼ ګري** :-(بَ+نْ+ګَ+ريْ) [اف: پ (قاموس) اس، ص، مؤ، وا] باغواني، باغباني، مالي توب.

**بڼ مانړو** :- (بَ+ڼ+ما+نْ+ړو) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: بڼ مانړوګان] (۱) برمانړو، وحشي، ځنګلي بنیادم، (۲) د شادوګانو، بیزوګانو یو قسم.

**بڼ وال** :- (بَ+ڼ+وا+لْ) [اف: پ (قاموس) اس ص، مذ، وا، (مؤ، وا: بڼ واله، ج: بڼ والې)] وــــ بڼ ګر.

**بڼول** :- (بْ+ڼ+ولْ) [اف: پ (قاموس) مص مت] د زیاتې رڼا په وجه سترګې نیمې غړول، برېښول.

**بڼول** :- (بَ+ڼَ+ولْ) [پ، (ب، خ) مص مت] د مکان چت جوړول یا اچول

**بڼونه** :- (بَ+ڼو+نَ) [پ (ب، خ) حمص] جوړونه، د مکان چت اچونه.

**بڼوُونکے** :- (بَ+ڼَ+وُوْ+نْ+کَے) [پ، (ب، خ) اس فاع، مذ، وا، ج: بڼوُونکي] جوړوُونکے، د مکان چت اچوُونکے.

**بڼوُونکے** :- (بَ+ڼَ+وُوْ+نْ+کَے) [اف: پ (قاموس) اس فاع، مذ، وا، ج: بڼوُونکي] د زیاتې رڼا په وجه سترګې نیمې غړوُونکے.

**بڼه** :- (بَ+ڼَه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: بڼې] څېره، بشره، رنګ.

**ــــ الوتل**:-اف،اص.رنګ بدلېدل، مخ زیړېدل، پرېدل، ډار اخستل.

**ــــ اوښتل**:-اف، اص.دسترې له کبله د مخ رنګ بدلېدل.

**ــــ خاورې کېدل**:-اف، اص.(۱) څېره خاورې کېدل، مړېدل، یعنې مړ کېدل، (۲) کمزورے کېدل.

**ــــ ګرځېدل**:-اف، اص.د څېرې رنګ تغیرېدل، خفه کېدل، پرېشانه کېدل.

**بڼه** :- (بَ+ڼَه) [پ، اس، مؤ، وا، ج: بڼې] پخه، پر.

**ــــ کول**:-اص (۱) پخه کول، پخه یا پر لوئېدل (۲) سپکول، هلکول.

بڼه کړے دې فلک د باد په مخ کښې
لکـه نمر هسې عالم په زور محکم (حمید)

**ــــ کېدل**:-اص.سپکېدل، هلکېدل.

**بڼې ایستل** :- (اص (۱) پخې یا بڼې ویستل (۲) ډېر بې عزته کول، سپکول.

**بڼې تویول** :- (اص) د مرغانو بڼې یا پخې غُورزول.

**بڼې نیول** :- (اص) (۱) بڼې یا پخې پرې راټوکېدل (۲) د چا څخه لږ شان مال زیاتېدل.

**بڼې بڼې کول** :- (اص) تار تار کول، څیرې ویرې کول.

**د بڼې نه سپک** :- (اص) ډېر سپک یا هلک، بې وزنه.

عاشقي به ئې اخر تر بڼې سپک کا
که وي درووند تر کوه قافه تول د چا (حمید)

**بڼهٔ** :- (بْ+ ڼهٔ) [پ ، اس ، مذ ، ج] باڼهٔ.

**دبڼو تېغ** :- (اص) د سترګو د بڼو اثر ، اکثر بڼهٔ د تُورې په شان لږ شان کاږهٔ وي څکه ورته د بڼو تېغ وئيلے شي.

**دبڼو غشي** :- (اص) د بڼو ناوک ، د معشوقې بڼو ته د غشو سره تشبيهه ورکړے شوې ده. لکه څنګه چې غشے زخمي کول کوي دغه شان باڼهٔ هم په زړهٔ اثر کوي.

کــه هر څو د بڼو غشي کاږهٔ ولي
يو له نخښې د زړهٔ نهٔ درومي خطا (حمید)

**دبڼو ناوک** :- (اص) و ـــــ د بڼو غشي.

د خوشحال ومرګ ته څهٔ توري وکاږې
د بڼو ناوک دې هم ورلـــره ډېر دے

**بڼهار** :- (بْ+ ڼ+ ها + رْ) [پ ، اس ، صو ، مذ] و ـــــ بڼا.

**بڼې** :- (بَ+ ڼې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بڼې] سرهٔ چړانګي ، چړانګو ، يو قسم ونه چې څانګې ئې زمکې طرف ته اوږاندې وي.

**بڼي** :-(بَ+ ڼي) [اف : پ (قاموس) اس،مذ ، وا ، ج : بڼيان] و ـ بڼګو

**بڼيا** :- (بَ+ ڼ+ يا) [پ (ظفر) ص] نيم کنبو دروازه.

**ـــــ کول**:-(ظفر) اص ـ دروازه نيم کنبو کول ، ور نيم خلاصول.

**ـــــ کېدل**:- (ظفر) اص ـ دروازه نيم کنبو کېدل ، ور نيم خلاصېدل.

**بڼيا توب** :- (بَ+ ڼ+ يا + تو + بْ) [پ ، اس] (۱) ساهوکاري ، دکانداري (۲) بخيلي ، شومتيا ، کنجوسي.

**بڼيـار** :- (بَ+ ڼْ+ يـا + رْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ (مؤ ، وا: بڼيـاره ، ج : بڼيارې] رنګساز.

**بڼيـــالے** :-(بَ+ ڼْ+ يـــا+لے) [اف : پ (قـــاموس) اس ، ص ، مـــذ ، وا ، ج: بڼياليـان، بڼيـالي (مـؤ ، وا: بڼيـالۍ ، ج : بڼيـالانې) ] ډولے ، ښـکلے ، ښائسته.

**بڼيچغ** :- (بَ+ ڼ+ يْ+ چَ+ غْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بڼيچغونه] و ـــ باڼيچغ.

**بڼېدل** :- (بَ+ ڼې + دَ+ لْ) [پ ، مص لا] (۱) د مچ يا ډمبرې بڼ بڼ کول (۲) ب ، خ ـ د مکان د چت جوړېدل ، د مکان په چت شهتير او لاړې اچول.

**بڼېدنه** :- (بَ+ ڼې + دْ+ نَه) [پ ، حمص] (۱) شور زوږ کېدنه ، د مچانو پرله پسې اواز کونه (۲) جوړېدنه ، د مکان چت اچولے کېدنه .

**بڼېدُونکے** :- (بَ+ ڼې + دُو + نْ+ کے) [پ ، حمص] (۱) شـور زوږ کېدنـه ، د مچانو پرله پسې اواز کونه (۲) جوړېدنه ، د مکان چت اچولے کېدنه.

**بڼېدونکے** :- (بَ+ ڼې+ دُو + نْ+ کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بڼېدونکي] (۱) شور ، زوږ کوونکے (۲) جوړېدونکے ، د مکان چت اچولے کېدونکے.

**بڼېز پرک** :- (بْ+ ڼې +زْ+ پَ+ رَ+ کْ) [اف : پ (قـاموس) اس، مذ] يو قسم سبزي يا شينکے.

**بڼېـژ** :- (بَ+ ڼې + ژْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] د مرغـانو پخې يـا بڼې اچول، کُرېز ، بڼ ژُون.

**بڼيـه** :- (بَ+ ڼْ+ يَـه) [پ ، ه : بنيـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بڼيـه ګـان] (۱) هنـدو دوکاندار، شوکار ، (۲) شُوم ، کنجوس ، بخيل.

**بؤ** :- (بَؤ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] (۱) بلا (۲) د ويرولو اواز.

**بو** :- (بَو) [اف : پ(قاموس) اس ، صو ، مذ] د ماشومانو د خندولو اواز.

**بو** :- (بو) [پ(وز) اس ، صف ج ،ځه ، لرې شه ، اخوا شه ، دا تکے صرف د اسپې د لرې کولو دپاره وئيلے شي.

**بـو** :- (بـو) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] (۱) د ازغـي يـا اغـزي څوکـه (۲) آتشک ، باد فرنګ.

**بو** :- (بو) [انګ ، اس ، مؤ] يو قسم ټائي چې د کالر دپاسه تړلے شي

**بو** :- (بُوْ) [فا ، اس مذ] بوئي ، وږمه.

**بو** :- (بُوْ) [اف :پ (قاموس) اس] اُوبهٔ، اوبهٔ ، (د ماشومانو په ژبه)

**بـوارے** :- (بُ+ وا + رے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بـواري] (۱) د څناور بچے چې د مور د پيو نه تازه تازه منع کړے شوے وي . (۲) هغـه پوستکے يـا څـرمن چې بيمـار تـه د عـلاج کولـو پـه ډول وراچولے شي.

**بواسير** :- (بَ+ وا + سِيْ+ رْ) [ع ، اس ، مذ] يو خطرناک مرض ، چې د شرم په ځاے کښې دانې شان پېدا شي. که وينه ترې نه ځي نو خوني بواسير ورته وائي اوکه هسې خارش يا درد کوي نو بادي يا بلغمي بواسير ورته وائي.

**بوالهوس** :- (بُو+ لْ+ هَوَ + سْ) [ع ، اس ، ص ، مـذ] (۱) لالچي ، حريص ، طمع کوونکے (۲) شهوتي

بوالهوس به نهٔ پتنګ نهٔ پروانــه شي
د مــګس په څېر له ورايه محبت کا (رحمان)

**بوالهوسي** :- (بُو+ لْ+ هَ+ وَ+ سِيْ) [پ تر ، اس ، ص ، مؤ] (۱)لالچ ، حرص ، طمع (۲) شهوت.

**بـوب** :- (بـو + بْ) [اف : پ (قـاموس) ص ، مـذ (مـؤ ، وا : بوبـه ، ج: بـوبې] خالص، صفا ، سوچه.

**ـــــ کول** :- (اف) صفا کول ، سُتره کول ، پاکول ، سُوچه راويستل

**ـــــ کېدل**:- (اف) صفا کېدل ، سُتره کېدل ، پاکېدل ، سوچه کېدل

**بـــوبرې** :- (بـــو + بْ+ رَې) [پ (ب ،خ+ بنـــو) اس، مـــذ ، وا ، ج : بـــوبرې] کشمالو، ريحان ، ببرې

**بوبک** :- (بُو+ بَ+ کْ) [پ ، اس ، معرفه ، مذ ، وا] د چارسدې په تحصيل کښې يو کلے.

**بؤ بلا** :- (بُو+ بَ+لا) [پ ، اس ، مؤ ، وا] بلا ، لويه بلا ، لوے آفت ، لوے مصيبت

**بوبن** :- (بو +بَ+ نْ) [اف : پ (قاموس) اس،مذ ، (مؤ، وا: بوبنده)] باري اوبن

**بو بو** :- (بَو + بَو) [پ ، اس صو] د برو ې اواز.

هم ئې وينم هم ئې اورم ترې تـــېرېږم
چـــې پـــه څنـــګ راته بروه کا بؤ بؤ (خوشحال)

**بوب والے** :- (بو+بْ+وا+لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـ بوبتوب

**بُو بُو تتے** :- (بُوْ+ بُوْ+ تَ+ تے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بُوبُو تتي] ګُډې چرګ ، ملاچرګک ، هُدهُد.

**بوبتـوب** :- (بـو + بْ+ تـو + بْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] بوبتيـا خـالص والے، سوچه والے ، بوب والے.

**بوبتيا**:- (بو + بْ+ تْ+ يا ) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] و ـ بوبتوب.

**بـو بـول** :- (بـو + بْ +ولْ) [اف : پ (قـاموس) مـص مت] خـالص کـول سوچه کول، صفا کول.

**بوبونه** :- (بَو + بْ+ وْ+ نه) [اف : پ (قاموس) حمص] خالص کونه ، سوچه کونه ، صفا کونه.

**بوبوُونکے** :- (بـو+بْ+وُوْ+نْ+ کـے) [اف : پ (قـاموس) فـاع ، مـذ ، وا ، ج : بوبوُونکي] سوچه کوُونکے، خالص کوونکے ، صفا کوونکے.

**بوبه** :- (بو + به) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بوبې] پټه خزانه ، پټ دولت ، پټه پنګه.

**بوبه پټنتو** :- (بو + به + پ + ش يا پ + ښ +تو) [اف : پ (قاموس) اس ص ،

مؤ] خالصه او سوچه پېنتو.

**بوبېدل** :- (بو + بې + دْ + لْ) [اف: پ (قاموس) مص لا] خالص کېدل، سوچه کېدل، صفا کېدل، بې وټه کېدل.

**بوبېدنه**:- (بو + بې + دْ + نه) [اف: پ (قاموس) حمص) سوچه کېدنه، خالص کېدنه، صفا کېدنه.

**بوبی** :- (بو + بی) [اف + پ (قاموس) اس، مؤ] ببی، مشره خور، مشره ښځه.

**بوبېدُونکے** :- (بو + بې + دُو + نْ + کَے) [اف: پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج: بوبېدونکي] خالص کېدونکے، سوچه کېدونکے، صفا کېدونکے.

**بوت** :- (بو + تْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، (مؤ، وا: بوته، ج: بوتې)] زلموټے، عاقل، ځوانی ته رسېدونکے.

**بوت** :- (بو + تْ) [پ، ماضي مطلق] بوتلو، بوئې تلو.

**بُوت** :-(بُوْ + تْ) [پ، فا، بُت، اس، مذ، وا، ج: بُوتان] (۱) بُت

ځو طالبې د معنٰي نهٔ شي جنابه

خېر به وئهٔ کړې هر گز د خالي بُوت (جناب کاکاخېل)

(۲) څېره، شکل، قد

**بُوتاړ** :- (بُوْ + تا + ړْ) [پ، اس، مذ] (۱) د ځناور مخ، خرټم، اُوربوز، (۲) د نفرت او کرکې په ډول د انسان مخ ته وئیلے کېږي. وران مخ.

**ـــ اړول** :- (اص) خفگان ظاهرول، مخ بل طرف ته کول، بوتاړ تاوول.

**ـــ تاوول** :- (اص) و ـــ بوتاړ اړول.

**ـــ ماتول**:- (اص) خولهٔ ماتول، بنهٔ ډبول، په مخ مخ وهل، دپکه کول.

**بد بوتاړ** :- (اص) سپېرهٔ مخ، بد مخ، وران مخ، سخامخ

شیرین عمر د ځوانی در باندې تېر شو

تـهٔ هم هسې سپېرهٔ مخے بدبوتاړ ئې (عبدالعظیم)

**بدبوتاړ نیول** :- (اص) سپېرهٔ مخ نیول، سپېرهٔ بوتاړ نیول، سخا مخ نیول، بوټ تندے نیول.

**سپېرهٔ بوتاړ نیول** :- (اص) و ـــ بد بُوتاړ نیول.

**بوتاوه** :- (بُوْ + تا + وه) [پ (اش) اس، مؤ، وا] گوتاوه، باړه،

**بوتکی** :- (بُ تْ + کی) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] اشرفی، د سرو زرو پخوانی سکه.

**بُوتکے** :- (بُوْ + تَ + کَے) [اف: پ (قاموس) اس، تصغیر، مذ، وا، ج: بُوتکي، (مؤ: بوتکی)] زلموټے.

**بُوتکے** :- (بُوْ + تْ + کَے) [پ (ظفر) اس، مذ، وا، ج: بُوتکي] (۱) ورکوټے دیوال، د پناهی دېوال (۲) هغه ورکوټے دېوال چې د ارهټ د کانځڼ سر پرې پروت وي.

**بوتلل** :- (بو + تْ + لَ + لْ) [پ، مص، مت] بیول.

**بوتل** :- (بو + تَ + لْ) [پ، انگ، باټل، اس، مذ، وا، ج: بوتلونه، بوتلینه] (۱) د شیشې نه جوړ هغه څیز یا ډبه کوپی چې دارو، شربت یا تېل وغېره پکښې اېښودلے شي (۲) اص. تش کدو، کم عقل، بې عقله، بې وقوف.

**بوتل خان** :- (اص) تش کدو، کم عقل، بې عقله، تش بوتل.

**تش بوتل** :- (لُغ) خالي بوتل، اص. بوتل خان.

**بوته** :- (بو + تَه) [پ، اس، مؤ، وا] کوټالی، د زرگرانو هغه وره د خاؤرو نه جوړه پیالی شان چې زر پکښې ویلې کوي.

سیم وزر مس وتانبه ترې پېدا ک ېږي

د مـورنس لکــه بوته دې د اکسیر (خوشحال)

**بوته** :- (بو + تَ) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] (۱) برمته، د یرغل په ډول د چا نه څهٔ نیول (۲) د وهلې شوې مال عوض چې د بوتلونکي سرې نه اخستلے کېږي.

**بوتے** :- (بو + تَے) [پ (ظفر) اس، مذ، وا، ج: بوتې، بوتیان (مؤ: بوتی)] جونگې، جونگ، د اوښ بچے، جونگړې.

**بوتی**:- (بُو + تَ + ی) [پ (ظفر) اس، مؤ] چوټی، چوټکه. د سر د ویښتو هغه اوږده گوچه چې هندوان ئې د کپړې په مېنځ کښې پرېږدي.

**بُوټ** :- (بُوْ + ټْ) [پ، اس، مذ (مؤ، وا: بوټه)] (۱) خفه، دلگیر، تریو مخ، گونځې تندے، مرور.

لاایله سره پخولا نهٔ یو بیا بُوټ وي

د امې لانوې پر هر ړدې په گایل زړهٔ (علیخان)

مؤ: د هغې ښځې صحبت لـکه دوزخ وي

چې مېړهٔ ونه تـل کښېني په مخ بوټه (خوشحال)

(۲) سر په پېنو.

**ـــ اوربوز** :- (اص) تریو مخ، گونځې تندے، سخا مخ، غُصه، خفه، مرور.

**ـــ اور بوز نیول** :- (اص) مرور کښېناستل.

**بُوټ اور بوزے** :- (اص) مرور، بوټ مخے، خفه، هغه څوک چې اوربوز ئې بوټ نیولے وي.

**ـــ کښېناستل** :- (اص) (۱) سر په پېنو کښېناستل (۲) خفه او مرور کښېناستل.

**ـــ ویستل**:- (اص) نېغ ویستل، څهٔ څیز د جرړو یا د ویخ نه ایستل.

**بُوټ** :- (بُوْ + ټْ) [انگ، اس، مذ، وا، ج: بُوټان، بُوټون] هغه پېزار چې پښې پکښې د گیټو پورې پټې وي. ځینې بوټان ددې نه هم لوے وي. او ښکاري بُوټان خو تر گوډو پورې رار سېدلي وي.

**بُوټ** :- (بُوْ + ټْ) [پ، اس، مذ] د جواری هغه پیسې چې فلاشیان ئې د لوبې د شروع نه اول مېدان کښې واچوي او چې څوک بازي اوگټي هغه ئې واخلي.

**بُوټ به** :- (بُوْ + ټْ + بَه) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: بوټ بانهٔ (مؤ، وا: بوټ بانه، ج: بوټ بانې)] لرگبه، لربه، هغه څوک چې د خاشاک د لرگو کار کوي.

**بُـوټ سُـوري** :- (بُوْ + ټْ + سُوْ + رِيْ) [اف: پ (قاموس) اس، ج] (۱) د ډوډی خځوري یا خځوسکي، پوټي، چُخانې (۲) د ورو چوکو یا جانې، بټ سورے.

**بُوټک** :- (بُوْ + ټَ + کْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا (مؤ، وا: بُوټکه، ج: بوټکې)] زلموټے.

**بُوټکه** :- (بُوْ + ټْ + کَه) [اف، پ (قاموس) اس، مؤ] یو قسم شینکے یا سبزي.

**بُوټول** :- (بُوْ + ټَ + وَ + لْ) [پ، مص مت] (۱) سوختول، غصه کول (۲) سر په پېنو کېښنول.

**بُوټونه** :- (بُوْ + ټَ + وْ + نَه) [پ، حمص] (۱) سوختونه، غصه کونه، (۲) سر په پېنو کښېنونه.

**بُوټی** :- (بُوْ + ټَ + ی) [پ، اس، مؤ] (۱) بېټی، د غوښې ټیکه

د مظلوم د مال روټی خپلې بوټی خوري

مـه شه هېڅ په دا خوراک خوش وخورم (حمید)

(۲) هغه پرهر چې وینه زوه ترې نه بهېږي.

**ـــ اخستل** :- (اص) (۱) د غوښې ټیکه اوچتول، (۲) شته من کېدل مالدار کېدل، بوټی کېدل.

**ـــ اوبهٔ کېدل** :- (اص) د ډېر غم نه مانده کېدل، د غم له کبله ډنگرېدل.

**ـــ بېلول** :- (اص) ټیکې بېلول، د چا ټُکړې ټُکړې او ټیکې ټیکې کول.

**ـــ خورول** :- (اص) (۱) ټیکې یا د غوښې ټُکړې خورول (۲) د چا **دپاره**

ډېر ځان کړول.

ـــــ **خوړل** :- (اص) (۱) د غوښې ټکړې یا تیکې خوړل (۲) د چا نه ځاني فائده حاصلول او د هغهٔ کړول (۳) د چا غیبت کول.

ـــــ **کول** :-(اص) (۱) څرېېدل ،غتېدل (۲) شته من کېدل ، مالداربدل.

**په بوټي، کېدل** :- (اص) څربېدل ، غتېدل ، غوښنه اخستل.تیاربدل.

**خپلې بوټي، خوړل** :- (اص) (۱) خپل ځان کړول (۲) خپل اولاد یا خپل خپلوانو ته نقصان رسول ، خپلې بوټي، شوکول.

**خپلې بوټي، شوکول**:- (اص) و ــ خپلې بوټي، خوړل.

**بُوټي، بُوټي**. :- (اص) تیکې تیکې ، ټکړې ټکړې ، ذرې ذرې.

ـــــ **بُوټي، کول** :- (اص) تیکې تیکې کول ، ذرې ذرې کول ، ټکړې ټکړې کول.

ـــــ **بُوټي، کېدل** :- (اص) تیکې تیکې کېدل ، ټکړې ټکړې کېدل ، ذرې ذرې کېدل.

**سره بُوټي،** :- (اص) (۱) سرهٔ تیکه ، سره ټُکړه (۲) ډېر ورکوټے ماشوم.

**بُوټے** :- (بُو + ټَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بوټي] (۱) هر هغه شینکے چې د زمکې نه راؤټوکېږي.او تنه ئې نهٔ وي.(۲) ب،خ ونه.

ـــــ **ایستل** :- (اص) (۱) بوټے د ویخ نه اوباسل یا کښل (۲) د څهٔ څیز بېخ یا جرړه ویستل ، بېخې ختمول.

ـــــ **جوړول** :- (اص) ګُلکاري کول ، کشیدې جوړول.

ـــــ **ختل** :- (اص) (۱) بوټے راټوکېدل (۲) تباه کېدل ، بربادبدل ، بېخ بنیاد وتل.

ـــــ **زرغونېدل** :- (اص) (۱) بوټے راوتل ، بُوټے شین کېدل (۲) نسل ډېربدل یا زیاتبدل.

ـــــ **ښخول** :- (اص) (۱) بُوټے نال کول ، د یو ځاے نه بوټے راویستل او بل ځاے لګول (۲) د چا په یو ځاے کښې په څهٔ کار لګول ، بُنیاد لګول.

ـــــ **کرل**:- (اص) (۱) د بُوټي تخم په زمکه کښې اچول (۲) بُنیاد لګول.

ـــــ **کښل** :- (اص) (۱) بُوټے اوباسل ، بوټے د ویخه ایستل (۲) بنیاد لوړول ، تباه کول ، د بېخه ویستل.

ـــــ **لګول** :- (اص) و ــــ بوټے ښخول.

**بُوټي** :- (بُو + ټِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] ګوټي ، هغه خوږ څیز چې د ماشوم د پیدا کېدو نه پس ئې هغهٔ ته ورکوي.

ـــــ **کول** :- (اص) یو څیز عادت کول ، د یو څیز د استعمالولو عادت جوړول.

ـــــ **کېدل** :- (اص) د یو څیز عادت کېدل.

**بوټے** :- (بُو + ټَے) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بوټي (مؤ : بوټي،)] بُوچے ، بُوځے ، هغه ځناور چې غوږونه ئې پرې وي

**بُوټېدل** :- (بُو + ټي + دَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] خفه کېدل سوختېدل

**بُوټېدنـه** :- (بُو + ټـي + د + نَـه) [اف : پ (قاموس) حمـص] خفـه کېدنـه ، سوختېدنه

**بُوټیکه** :- (بُو + ټِيْ + کَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] یو بوټے چې په زمکه خور وي.زنانه ددې بوټي پاڼې د سپرو د لرې کولو دپاره په سر کښې ږدي.

**بوج** :- (بو + ج) [پ ، ه : بوجھ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بوجونه ، بوجینه] (۱) باد ، پېټے ، وزن (۲) ذمه واري ، فکر ، خیال (۳) قرض ، پور.

**بُوجرکے** :- (بُو + جَ + رْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج : بوجرکي] د شمزۍ یا د ملاد تیر یو اړوکے.

**بُوجګۍ** :- (بـو + جَ + ګَ + ی) [پ ، اس تصـغیر ، مـؤ] وړه بـوجی، ، ورکوټې کڅوړه.

**بُوجـه** :- (بُو + جَـه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، واج : بوجې] د کوزې یا شیشې د بندولو کاک یا بوجې ، ختپولے.

**بُوجهل** :- (بُو + جَ + هْ + لـغ) [ع ، اس ، معرفه ، مذ] ابوجهل ، د قریشو هغه سردار چې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم ځاني دښمن ؤ.او د بدر په جنګ کښې د دوو ماشومانو رونړو معاذ او معوذ دلاسه وژلے شوے ؤ.

**بُوچې** :- (بُو + چَے) [پ (سو) اس ، مذ ، وا] و ـــ بُوجه.

**بوچی** :- (بو + چَ + یی) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج] بورۍ ، ګونۍ.

**بُـوچ** :- (بُو + چْ) [پ ، ه : بُوچا ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : بُوچي (مؤ وا : بوچه ، ج : بوچې)] بوټے ، بوځ ، هغه انسان یا حیوان چې پوزه یا غوږ ئې پرې وي.

ـــــ **کول** :- (اص) بوټے کول ، غوږ یا پوزه پرې کول.

ـــــ **کېدل** :- (اص) بُوټے کېدل ، غوږ یا پوزه پرې کېدل.

**بُوچ پزے** :- (بُوچ + پْ + زَے) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، ج: بُوچ پزي (مو : بُوچ پزې)] پوزه پرې کړے ، هغه څوک چې پوزه ئې پرې کړے شوي وي.

**بُوچ خرے** :- (بُوچ + خْ + رَے) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، ج : بُوچ خرې] په باغ کښې د ځناورو د یرولو دپاره رنګ رنګیزې لکې کړې شوې لتې یا کپړې.

**بُوچړ** :- (بُو + چَ + ړْ) [پ ، اس ، مذ] لړ شان څیز پاتې شونے ، پُوټسکے ، بُوچړکے ، بوچړے ،توخرکے،ختوزے (کُرم).

ـــــ **پاتې کېدل** :- (اص) د یو څیز څهٔ لږه حصه پاتې کېدل.

**بُـوچړه** :- (بُـو + چْ + ړَه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بـوچړې] د سوځولو اوچ وابنهٔ.

**بُـوچړے** :- (بُو + چْ + ړْے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا] د دریـاب نـه بېل شوے سرې ورځ.

**بُـوچړے** :- (بُو + چْ + ړَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بُوچړیـان] (۱) د ما ر بچے (۲) د زنانه د شرمګاه بُوټکے.

**بُوچک** :- (بُو + چَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) یو قسم خربوزه چې اول ترخه وي.روستو بیا خوږه شي (۲) ساده قمیص.

**بُوچونے** :- (بُـو + چُـو + نْ + رَے) [اف : پ (قـاموس) اس، مـؤ ، وا ، ج: بوچوني] د ژرنده ګرې شاګرد.

**بُوچوني** :- (بُو + چُو + نْ + رِيْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ] هغـه دُوړه یااوړهٔ چې د ژرنده ګرې شاګرد ئې د غلې د خاوند نه اخلي.

**بُوچی،** :- (بُو + چَ + یی) [اف : پ (قاموس) اس مؤ] د یو خاص بُوټي نرۍ ریشه چې خوند ئې ډېر خوږ وي.

**بُوچے** :- (بُو + چَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ،وا ، ج : بوچي (مؤ ، وا ، بوچی، ، ج : بوچیانې)] بُـوچ ، بُـوځ ، دا ټکے اکثر د لنډې سره وئیلے شي. لکه : لنډے بوچے ، داسې کس چې بېباکه ، بې شرمه او اړتاوک وي

**بُوچي بُوچي** :- (بُو + چِيْ + بُو + چِيْ) [اف ، پ (قاموس) ص] تیکې تیکې ، ټوټې ټوټې ، ټکړې ټکړې.

ـــــ **کول**:-(اف) ټکړې ټکړې کول ، تیکې تیکې کول ، ټوټې ټوټې کول.

ـــــ **کېدل** :- (اف) ټکړې ټکړې کېدل ، تیکې تیکې کېدل ، ټوټې ټوټې کېدل.

**بُـوخ** :- (بُو + ښْ) [پ،اس،مذ (مؤ، وا:بُوښه،ج: بوښې)] (۱) خفه ، دلګیر ، په غصه کښې (۲) هغه حیوان چې د یرې نه ئې غوږونه نېغ نیولي وي.

ـــــ **اړول** :- (اص) (۱) اپوته اړول ، په بل مخ اړول، پـه بـل مـخ کـول ، پر مخ غوزول .(۲) راپرزول ، بې هوشه کول .

ـــــ **اوښتل** :- (اص) (۱) پرمخ اوښتل ، لوټکي خوړل ، خربازي خوړل، (۲) بې هوشه کېدل .

ـــــ **بُوخ کېدل** :- (اص) (۱) خفه خفه کېدل ، غصه غصه کېدل (۲) هسې ګرځېدل را ګرځېدل ، اوښتل را اوښتل .

ـــــ **کښېناستل** :- (اص) خفـه او دلګیر کښېناسـتل ، پـه سُوخت کښـې کښېناستل ، بُوټ تندے نیول .

ـــــ **کېـدل** :- (اص) (۱) خفـه کېـدل ، ناراضـه کېـدل ، غصـه کېـدل . (۲) غوړونه نېغ نیول ، ځۀ خبرې ته پام کول .

**بُوښکی** :- (بُوْ + ښَ + کَی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) مزدوري ، أجرت د زناناؤ په دواړو پښو داسې ناسته چې د عادت خلاف وي .

**بُوښکی** :- (بُوْ + ښْ + کَ + سَی) [پ (ظفر) اس، مؤ] پسکے ، پښکے ، د غوږ لاندې نرمه حصه .

**بُوښوالے** :- (بُوْ + ښس + وا + لَے) [پ ، اس ، مذ] (۱) خفګان ، خفتیـان ، ناراضګي، غصه (۲) غوږ لګونه یا نېغونه .

**بُوښول** :- (بُوْ + ښَ + وَ + لْ) [پ ، مص مت] (۱) خفه کول ، ناراضه کـول (۲) غوږ نیول یا لګول .

**بُوښوُونکے** :- (بُـوْ + ښـسَ + وُوْ +نْ +کَـے) [پ ، اس ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج: بُوښـوُونکي (مـؤ ، وا: بوښـوُونکې] (۱) خفـه کـوونکے ، ناراضـه کُوونکے (۲) غوږونه نېغوُونکے یا لګوُونکے .

**بُوښې** :- (بُوْ + ښَـی) [اف ، پ (قاموس) اس، مؤ] و ـ بُوښکی .

**بُوښے** :- (بُوْ + ښَـے) [پ (ب ، خ) اس ص ، مذ ،وا ، ج : بُوښي] و- بُوټے .

**بُوښېدل** :- (بُـوْ + ښـې + د+ لْ) [پ ، مـص لا] (۱) ناراضـه کېـدل ، خفـه کېدل ، سوختېدل (۲) غوږونه نېغ نیول .

**بوځل** :- (بو + دْزْ + لْ) [اف : پ (قاموس) اس مذ] د کاڼو دېوال .

**بُوخ** :- (بُوْ + خ) [اف : پ (قاموس) اس ، مـذ (مؤ ، وا: بُوخه ، ج : بوخې)] خفه، دلګیر ، غمجن ، د غم نه غلے ناست .

ـــــ **کښېناستل** :- (اف) خفه ، غمجن او چپ کښېناستل ، د غم نه غلے کښېناستل .

**بوخت** :- (بُو + خْ + تْ) [پ ، اس ، مـذ (مؤ ، وا، بوختـه ، ج : بـوختې)] لګیا ، اخته ، مشغول ، مصروف ، نښتے ، بُوخت .

**بُوخت**:- (بُوْ + خْ + تْ) [پ (سو) اس ، مذ ] (و ـــ بوخت .

**بوختــه** :- (بـو + خْ + تَـه) [پ ، اس ، مـؤ ، وا، ج ، بـوختې] (۱) جبـه ، زیمناکه زمکه (۲) ګرانه کشاله ، پېچیده خبره .

**بُوختــه** :- (بُـوْ + خْ + تـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] غوښـه د کبـاب جوړولو دپاره په مساله کښې لړل .

**بُوخخې** :- (بُوْ + خْ + ښـی) [پ ، اس ، مؤ] کخوړه ، د کپړې نه جوړه بوجګی. شان چې جامې لتې په کښې کښېښولے شي او پـه ورکوټې بوخخې کښې پیسې ټکې ږدي .

**بُود** :- (بُو + دْ) [پ ، اس ، مذ] (۱) حاصل ، ګټه ، نفع ، فائده ، سود

کـــــه رنګ خوبي ئې ستا یې بود ئې نشه
په جهان کښې که باقي دے خو اخلاق دے (خوشحال)

(۲) اف : بُوساړه چې د بهر نه لیؤ ورکړے شوے وي . پلـه (۳) (سو) فکـر ، خیال ، لکه څه بُود دې ور رسي .

ـــــ **اخستل** :- (اص) فائده حاصلول ، ګټه اوچتول .

ـــــ **کول** :- (اص) ځۀ وصولول ، ځۀ په لاس راتلل ، د چا نه ځۀ اخسـتل ، بُودول

ـــــ **کېدل** :- (اص) د چا نه ځۀ بودېدل یا حاصلېدل .

**بُود** :- (بُوْ + دْ) [اف : پ (قاموس) س : بُدهـ ، اس ، مـذ] (۱) فکر ، تـدبیر (۲) هوښیار سړے ، پوهه سړے .

**بُود سړے** :- (اف) هوښیار سړے ، د تدبیر خاوند .

**بې بُوده سړے** :- (اف) نابوده سړے ، بې فائدې او نامعقول سړے ، بې بنده سړے .

**پټے یا ځۀ بل شے په بُود کښې کېدل** :- (اف) پټې یا د بل ځیز نه زیاته فائده حاصلېدل

**په بُود رسېدل** :- (اص) په ځۀ خبره پوهېدل ، د ځۀ قیصې پـه مطلب یـا بند پېوند پوهېدل

**په بُودئې پوهېدل** :- (اص) د ځۀ ځیز په چل ، تدبیر یا بند پوهېدل

**نا بوده خبره** :- (اف) بې فائدې خبره ، عبث خبره ، بې بنده بې پېونده خبره .

**بُودتـــون** :- (بُـــوْ + دْ + تُـــوْ + نْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بودتونونه] بُت خانه ، دهرمسال .

یا بــه مات کا بودتونونه د بانېړو
یا به سرۀ کاندي په وینو دېوالونه (ښکارندوئے)

**بُودرې** :- (بُوْ + دْ + رَ + یَی) [پ ، اس مؤ] و ـــ بُدرې

په خیال خیال ئې ترپوې بودرې وڼۀ خوري
د منـــدېـــل شـملې پرېښے سور د جنګ (خوشحال)

**بودلک** :- (بو + دْ + لَ + کْ) [اس ، مذ ، وا] د سرو کافرو هغـه مضبوط او تکړه زلمے چې د هغوي د سالانه مېلې ننګیالے یا هیرو ګڼلے شي .

**بودلنه** :- (بـو + دْ + لْ + نـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] کم عقلتیـا کـم عقل توب، بې وقوفي ، ساده توب

**بودله** :- (بـو + دْ + لَـه) [پ ، ص ، مـذ ، وا، مؤ : بـودلې] کم عقـل ، بې وقوف ، ساده ، بودلے ، نادانه ، ناپوهه .

**بودلے** :- (بو + دْ + لَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا، ج : بودلي (مؤ ، وا : بودلې ، ج : بودلیانې)] و ـــ بودله .

**بُودو** :- (بُوْ + دُوْ) [پ، ه : بُدهو ، اس ، مـذ ، وا، ج : بُودوان] کم عقـل ، ناپوهه، بې وقوف .

**بُودول** :- (بُو + دَ + وَ + لْ) [پ ، مص مت] حاصلول ، فائده اخسـتل ، تـر لاسه کول .

**بُودونه** :- (بُوْ + دَ + وْ + نَـه) [پ ، حمص] حاصـلونه ، فائـده اخسـتنه تـر لاسه کونه .

**بُودوُونکے** :- (بُـوْ + دَ + وُوْ + نْ + کَـے) [پ ، اس ، فـاع ، مـذ ،وا ، ج: بُودوُونکي] حاصلوُونکے ، فائده اخستونکے ، ترلاسه کوُونکے ،

**بُوده** :- (بُوْ + دَه) [پ ، اس ، مؤ] (۱) د تنسـتې هغـه تـار چې پـه سـورو یعنـي عـرض کښـې لګـي .(۲) کمزورے ، مانده (۳) چینجو خوړلے لرګے .

**بُوده** :- (بُو +دَه) [پ، اس، مؤ، و، ج : بودې] فائده ، ګټه ، حاصل ، نفع .

ـــــ **کول** :- (اص) ګټه کول ، ځۀ حاصلول ، نفع کول ، د چا نه ځۀ تر لاسه کول ، فائده حاصلول .

**بوده** :- (بو + ده) [اس ، مذ ، وا ، ج : بوده ګان] ښاروے ، غـوا ، غوایـان یا بل بار وړُونکے ښاروے .

**بوده رو** :- (بو + دَه + رَوْ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ] د بـاري یـا بـار

کړو څاروؤ لار۔

**بودی** :- (بو + دی) [ پ ، اس ، مؤ] چوټکه ، بوتی ، بوتکه ، بوته

**بودي ایش** :- (بو + دي + ايْ + شْ) [ پ (وز) اس ، مذ ، وا ، ج : بودي ایشون ] مهاري اوښ ، مهارې ، باري اُوښ۔

**بُودېدل** :- (بُوْ + دي + دَ + لْ) [ پ مص لا] حاصلېدل ، ترلاسه کېدل

**بُودېدنګ** :- (بُوْ + دي + دَ + نْ + ګ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــ بودېدنه۔

**بُودېدنه** :- (بُوْ + دي + دْ + نَه) [ پ ، حمص ] حاصلېدنه ، ترلاسه کېدنه ، بُودېدۀ

**بُودېدُونکی** :- (بُوْ + دي + دُوْ + نْ + کَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : بُودېدونکي ] حاصلېدونکی ، ترلاسه کېدونکی۔

**بُودېدۀ** :- (بُوْ + دي + دۀ) [ پ حمص ] و ـــ بُودېدنه۔

**بوډا** :- (بُوْ + ډا) [ پ ، ه : بڈها ،اس ، مذ ، وا ، ج : بوډاګان ، (مؤ ، وا : بوډۍ ، ج : بوډیانې) ] زوړ ، د لوی عمر ، ضعیف ، د ستر عُمر ، عمر خوړلی۔

اصـــحابو وې چې پلار ئې دے وفات
او بوډۍ مور ئې په کور کښې ده حیات (عبدالسلام)

**بُوډابوق** :- (بُوډا + بو + ق) [ پ (سو) اس ص ، مذ] هغه زوړ سړے چې خلک خندا ور پورې کوي۔

**بُوډا توب** :- (بُوډا + تو + بْ) [ پ ، حمص ] بوډا والے ، ضعیفي ، ستر عُمر ، زوړ والے۔

**بُوډاګے** :- (بُو + ډا + ګَے) [ پ ، اس ، تصغیر ، مذ ، وا ، ج : بوډاګي (مؤ : بوډاګۍ) ] د بوډا اسم تصغیر بُوډوګے۔

**بُوډا والے** :- (بُوډا + وا + لَے) [ پ، هـ ، اس ، مذ] و ـــ بوډا توب۔

**بُوډچقه** :- (بُو + ډَ + چْ + قه) [ پ (سو) اس ص ،مؤ] هغه زړه ښځه چې خلک خندا ورپورې کوي۔د بوډابوق مؤنث۔

**بُوډخه**:-(بُو+ډْ+خه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بُوډخې] زړه ښځه بُوډغه ،

**بُوډغه** :- (بُو + ډَ + غَه) [ پ، اس ، تصغیر ، مؤ] و ـــ بوډخه۔

**بُوډک** :-(بُوْ +ډَ +کْ) [ اف پ (قاموس) اس ، مذ] ښکر ور وز یا پسۀ۔

**بُوډ کاکا** :- (بُوډْ + کا + کا) [ پ (سو) اس ، مذ] د ماشومانو یوه لوبه ماشومان یو ځاے شي۔یو په کښې بوډا جوړ شي امسا په لاس نور هلکان وهي ، چې کوم ئې ولګي نو بیا هغه بوډا کاکا جوړ شي۔

**بُوډوګے** :- (بُو + ډو + ګَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، تصغیر ، مذ ، وا ، ج : بُودوګي ] و ـــ بوډاګے۔

**بُوډے** :- (بُوْ + ډَے) [ پ ، اس ، ص ، مذ ،وا ، ج : بوډي (مؤ ،وا : بوډۍ ، ج : بوډیانې) ] و ـــ بوډا۔

**بُوډے جر** :- (بُوْ + ډْے + ج + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس مذ] د ماشومانو یوه لوبه ، پټ پټونه۔

**بوډۍ** :- (بو + ډَ + ی) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] ګوډۍ ، پتنګ ، باډیوه ، باجوه۔

**بُوډۍ** :- (بُوْ + ډَ + یَی) [ پ (سو) اس ، مؤ] (۱) په اوبو کښې د ګوتو ګونځې ګونځې کېدل (۲) اوښکۍ ، هغه ملخ چې نرۍ ملا ، اوږدې پښې او د هغه د لوټې په شان رنګ وي چې په کومې ناست وي (۳) غانټول۔ د ګُل په مېنځ کښې ولاړ شین تېغے چې ماشومان ئې را اوشوکوي او په تلي کښې ئې اودروي او دا ورته وائي : بوډۍ بوډۍ غانټول کوم خوا دے۔

**بُوډۍ ټال** :- (بُو + ډَ + یَی + ټا + لْ) [ پ ، اس ، مذ] سرۀ زرغونه ، سرۀ شنۀ ، پېنګه ، سرۀ کاسه ، هغه سرۀ شنه کربنه چې د باران ورېدو نه ورستو د اسمان په لمن راڅرګند ېږي،شین زرغون (کُرم)۔

**بوډۍ کټ** :- (بُو + ډَ + یَی + کَ + ټْ) [ پ ، اس، مذ] (د بوډۍ کټ) و ـــ آسمان کټ۔

**بُوډۍ نیول** :- (اص) د پښې اودۀ کېدل ، د پښې کُرندي نیول ، پښه مېږي مېږي کېدل۔

**د بوډۍ برستنې** :- (سو) اص۔د مازیګر په وخت دنمر طرف ته سرې وریځې

**د بوډۍ سپے** :-(اص) د اسمان کټ،څلورو ستورو سره نژدې دویم ستورے

**د بُوډۍ څرخه** :- (اص) د سپوږمۍ په مخ تور داغ۔

**د بُوډۍ ګډُورے** :- (اص) د اسمان کټ یا د بُوډۍ کټ د څلورو ستورو سره نژدې اول ستوري ته د بُوډۍ ګډورے دویم ته د بوډۍ سپے او دریم ته لېوۀ وئیلے شي۔

**بور** :- (بَ + وَ + رْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بوران ] پړانګ۔

**بور** :- (بو + رْ) [ اف ، پ (قاموس) اس ، مذ] ملا ، ملیا۔

**بور** :- (بو + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، (مؤ ، وا : بوره ، ج: بورې) ] خړ رنګ۔

**بور** :- (بو + رْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو قسم تُوت چې رنګ ئې سوربخن وي ، بوره تُوت۔

**بُور** :- (بُوْ + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) بر ، د مرغۍ د الوتلو اواز (۲) د ګاځرې وغېره پانه (۳) د لرګي د څېرلو په وخت راوتونکې براده۔

**بُور** :- (بُوْ + رْ) [ پ (ب ، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : بُورونه ] د ونې د ګل یا مېوې نه اول نیولے بُور۔

**بُور** :- (بُوْ + رْ) [ پ (ګن) اس، مذ] د غز د ونې د څانګې نرۍ ګوچه

**بور** :- (بو + رْ) [ انګ ، اس ، مذ] (۱) د ټوپک ، تماچې ، توپې یا مشین د شپېلۍ یا نلۍ د ارتوالي اندازه (۲) تنګ (۳) په برمې سُورے ایستل۔

**ـــ کول** :- (اص) (۱) تنګول ، مغز خوړل (۲) په برمې سُورے کول۔

**باره بور** :- (اص) چرې دار ټوپک ، چرئیز ټوپک۔

**بورا** :- (بَو + را) [ پ ، ه : بهنورا ، اس ، مذ، وا، ج : بوراګان] (۱) یو تور ګونګټ چې په ګلونو ګرځي او په لرګو کښې سوري کوي۔(۲) اص۔ رقیب (۳) تور مخے ، تور سړے ، تور شاخېل۔

**بُورا** :- (بُو + را) [ پ ، اس ، مؤ ، ج ] چیني ، شکره س

**بُور بُوره** :- (بُوْ + رْ + بُوْ + رَه) [ اف : پ (قاموس) اس ج بوربوکۍ ، کاندیال ، یو قسم مشهور بوټے۔

**بورجل** :- (بو+ رْ + جَ + لْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا] (۱) دُرشل ، کور ،

کـه وعــده دې د لیدو په ماسخوتن وي
په بورجل باندې دې ناست په ما صبا کړې (خوشحال)

(۲) د ختو لوټو یا کاڼو ګټو نه جوړه ډمبرۍ یا دونکاچه۔

**بُورچنډه** :- (بُو + رْ + چَ + نْ + ډه) [ پ ، اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : بورچنډې ] هغه ښځه چې بچے ئې د تې رودلو په وخت کښې مړ شي س۔

**بُورڅانې** :- (بُوْ + رْ + ځْا + نْ + ړْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱)مېوه څنډُونکے ، (۲) د مېوې د څنډلو وخت۔

**بورډ** :- (بو + رْ + ډْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا، ج : بورډونه ، بورډینه] (۱) تخته ، (۲) ټولے ، انجمن ، کمېټي۔

**بورډ اف انټرمیډیټ اینډ سکنډري ایجوکېشن** :- (اس مر) د لسم او دولسم جماعت د امتحانونو د اخستو ذمه واره اداره۔

**بورډ اف ډائرېکټرز** :- (اص) د کمپنۍ ، بېنک يا کارخانې د مالکانو او انتظام کونکو ټولے يا ډله ، د يوې ادارې د انتظامي مشران.

**بورډ اف ريونيو**:- (اص) د مال د محکمې د اعلىٰ افسرانو کميټي

**بورډنګ هاؤس** :- (بو + ر + ډِ + نْ + ګْ + هاؤ + سْ) [انګ ، اس ، مذ] د مدرسې د هلکانو يا جينکو د استوګنې ځاے.

**بور ژوا**:- (بو +رْ+ ژ+ وا) [فرانسيسي،اس، ص] (۱) پرولتريت طبقه (۲) اشتراکيان، دا ټکے د هر قسم د استحصاليانو دپاره استعمالوي.

**بور ژوائي** :- (بو + ر + ژ + وا+ ئيْ) [فرانسيسي ، ص] استحصالي.

**بُورغو** :- (بُو + رْ + غُوْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بورُغوګان] ورکوټے چيلم.

**بورقه** :- (بو + رْ + قه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بورقې] و ـــ بُرقعه.

**بورک**:-(بو+رْ+کْ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بورکونه] هغه ګردنۍ چې د څرخې دُوک په کښې تېرېږي.

**بورک اېسډ** :- (بو+رَ+کْ+ اي + سَ + ډْ) [انګ ، اس ، مذ] يوه دوائي.

**بورکي** :- (بُوْ + رْ + کِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هغه توبره چې اس ته خوراک په کښې ورکوي.

**بورکۍ** :- (بو + رَ + کَۍ) [پ ، اس ، مؤ ، وا] هغه وړه بورا چې په خرو باندې سرۀ يا خاوره په کښې وړلے کېږي.

**بورګے** :- (بَ + وَ + رْ + ګے) [پ (ظفر) اس ، تصغير ، مذ ، وا ، ج : بورګي] ورکوټے پړانګ.

**بورګے** :- (بَو + رْ + ګَے) [پ (ب ، خ) اس تصغير ، مذ ، وا ، ج : بورګي] ورکوټے بار ، بارګے.

**بورګے** :- (بـو + رْ + ګَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بورګي] پېرکے ، هغه ډوډۍ چې د هغې په مېنځ کښې سبزي په غوړو کښې تلولے پخولے شي.سموسه.

**بورنۀ** :- (بو + رْ + نْ +رَۀ) [پ ، اس ، مذ ، ج] (۱) خشکه ، هغه دُوړه يا اوړۀ چې پېړه په کښې اخښلے شي.سپېروُونې(۲) ب ، خ د سترګو باڼه.

**ـــــ پرې دُوړول** :- (اص) خبره خوږه ول ، خبره ترسکونه ول ، خبرې ته خوند رنګ ورکول.

**بورنګ** :- (بَـو + رِ + نْ + ګ) [انګ ، اس ، مذ] (۱) د برے سورے . (۲) ټيوب ويل ، د بجلۍ کوهے ، (۳) د لارۍ موټر انجن بور کول

**بوره** :- (بو + رَه) [پ (ظفر) اس ، مؤ ، وا ، ج : بورې] (۱) لويه بورۍ ، د خاؤرو وړلو بوره (۲) توره ، ناکرلې زمکه ، شاړه زمکه ، سادين ، (۳) برج (۴) ب، خ ـ رده ، د دېوال وار.

**بوره توت** :- (بَو + ره + تُو + تْ) [پ (سو) اس ، مذ ، وا ، ج : بوره توتان] يو قسم تُوت چې رنګ ئې سوربخن يا سوربخن وي.

**بُوره**:- (بُوْرَه) [پ،ص،مؤ] هغه ښځه ياښاروے چې بچے ئې مړ وي.

**ـــــ بدنامه** :- (اص) هغه ښځه چې په أُودو کېدو کښې خپل زوے د اړخ نه لاندې راولې او مړ ئې کړي.

**ـــــ بدنامه کېدل**:- (اص) (۱) دښځې زوے تر اړخ لاندې راتلل او مړ کېدل (۲) نېکې په سيند لاهو کېدل ، ښېګړه عبث تلل.

**بُوره وراره** :- (اص) هغه ښځه چې زوے او ورور ئې مړ وي .دا ټکے د ښېرو په ډول استعمالېږي.

نن په حال زما ژړا کړي
چې مې وينې بورې وراړې (پير محمد کاکړ)

**بورے**:-(بَو+رَے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : بَورې] تريخے

**بُورے** :- (بُوْ + رَے) [پ (وز) اس ، مذ ، وا]سخے ، سخوندر.

**بُورے** :- (بُوْ + رَے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : بُورې ، (مؤ : بورۍ)] (۱) پوزه پرې کړې، بوړے ، (۲) هغه کوزه چې کشکول يا سُنت ئې مات وي.زيړبخن رنګ.

**بورۍ** :- (بو + رَ + يې) [پ ، اس ،مؤ] ګونۍ ، بوجۍ.

**بوريا** :- (بو + رْ + يا) [پ (مهمند) اس ، مذ ، وا ، ج : بورياګان] د مېزرو نه جوړه لويه بورۍ چې سره يا خاوره په سندا پټې ته په کښې وړلے شي.

**بوريا** :- (بو+رْ+يا) [اف : پ (قاموس) اس،مذ] د شګليني مزکې يو بوټے.

**بوريا** :- (بو + رْ + يا) [فا ، اس ، مذ] پُوزے ، چټائي.

**بورياباف**:-(بوريا+با+فْ) [فا،اس ،ص ، مذ ، وا] پُوزے جوړوونکے.

بوالهوس د عاشقۍ ته هوس نۀ کا
دا دروغ دي چې زردوز شي بوريابان (رحمان)

**بوري بندېږي** :- (بُو + رِيْ + بَ + نْ + ډِي) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] د غلطو رسمونو رواجونو نقصان.

**بُوري بندوي** :- (سو) اص .د وراني خبرې .د وراني جوړولو صلاح، خصوصاً د خوابنې خلاف د انږوريانو په خپلو کښې سازش.

**بُوربدل** :- (بُوْ + رِي + دَ + لْ) [پ ، مص لا] د ښځې بچے مړېدل.

**بُوړ** :- (بُو + ړْ) [پ ، ص ، مذ ، (مؤ ،وا ، بوړه ، ج : بوړې)] هغه څيز چې سالم نۀ وي.څنډه يا غاړه ئې ماته وي.''متل :- بُوړ منګے وے په ځاے ډکېږي.په ځاے تشېږي ''

**بوړ** :- (بو + ړْ) [پ (ګن + ب + خ) اس ، مذ ، وا ، ج : بوړونه] (۱) اينګولے ، لمدبل ، ترکاري ، لاوڼ ، پخکړے

ککوړے دمۀ خورے جوړ
په ارمان مړ شې د بوړ (مياحسيب ګل)

(۲) کم عقل ، احمق.

**بُوړبک** :- (بُوْ + ړْ + بَ + کْ) [اف:پ (قاموس) اس ،م، (مؤ، وا: بُوړبکه،ج : بُوړبکې)] بې باک او بېهوده سړے ، هغه څوک چې خولۀ ئې په واک کښې نۀ وي.بکواسي ، پُوچ ږغېدونکے.

**بُوړبنګ** :-(بُوْ + ړْ + بَ + نْ + ګ) [اف ، پ (قاموس) اس ، ص ،مذ] (۱) هغه غرئيز بوټے چې مېنځ ئې ډډ وي .(۲) بوړبک ، بې واکه ږغېدونکے ، خبر لوڅ.

**بُوړبوړکې** :- (بُوْ + ړْ + بُوْ + ړَ + کَۍ) [پ ، اس ،مؤ] و ـ بوړبوکۍ.

**بُوړبُوکۍ** :- (بُوْ + ړغ + بُوْ + کَۍ) [پ ، اس مؤ] (۱) بړبوکۍ ،خوړيني ،بړبوقۍ ، دوړ دوړ که ، (۲) د اوبو ټومبخه يا بُلبله ، بُوړبوړکۍ.

**بُوړبوکے** :- (بُـوْ + ړْ + بُو + کَے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج: بوړبوکې] يو سپين رنګې کمزور شان بوټے چې په لږ باد پرتاوېږي.

**بُوړندي** :- (بُوْ + ړْ + نْ + دِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، صو ،مؤ] د مستۍ په حالت کښې د اوبو برا يا تالو وهنه.برړا ، برړېدنه.

**ـــــ وهل** :-(اف) اص.د مستۍ په حالت کښې د اوبو برېدل يا تالو وهل

**بُوړول** :- (بُوْ + ړَ + وَ + لْ) [پ ، (ب ، خ) مص مت] (۱) د لوښي څنډه يا غاړه ماتول (۲) د سالمې ډوډۍ نه لږه شان ټکړه بېلول (۳) معمولي ګذاره کول.

**بوړونه**:- (بُوْ + ړَ + وَ + نَه) [پ، (ب،خ) حمص] (۱) د لوښي څنډه يا غاړه ماتونه (۲) د سالمې ډوډۍ نه لږ شان ټکړه بېلونه ، بوړے کونه

**بُوړوُونکے** :- (بُوْ + ړَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ (ب ، خ) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : بُوړوُونکي] (۱) د لوښي څنډه يا غاړه ماتوُونکے ، (۲) د سالمې

ډوډۍ نه لږ شان ټکره ببلوونکے ، بوړے کوونکے .

**بُوره** :- (بُوْ + رَه) [اف :پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بُورې] د غرۀ په سر یا په سرکوب هواره زمکه . بُوره .

**بورا** :- (بُوْ + رَا) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ] یو چینجے

**بوره** :- (بو + رَه) [پ (ب ، خ ۀ اس ، مؤ] و ـــ باره (۳)

**بوره** :-(بو + رَه) [اف : پ (قاموس) ص] پاتې شونے کار ، دکارخرابي

ـــــ **کېدل** :- (اف) کار نیمګړے پاتې کېدل ، کار په مېنځ کښې پاتې کېدل ، کار ورانېدل ، کار د نېتې نه روستو کېدل .

**بوره** :- (بَو + رَه) [پ (ګن) اس ، مؤ] د قلم په سیاهۍ کښې یو وار ډُوبول ، قلم ځوکه کول .

ـــــ **اخستل** :- (ګن) یو ځل قلم په سیاهي کښې ډُوبول ، یو ځل قلم ځوکه کول .

**بوړے** :- (بُوْ + ړَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بُوړي ، (مؤ : بوړۍ)] (۱) هغه څوک چې پوزه او غوږ ئې بوږ وي یعنې پرې وي (۲) یولس ډزے ټوپک .

**بوړے** :- (بُو + ړے) [پ (سو) اس ، مؤ] و ـــ بوړیئے .

**بوړۍ** :- (بُو + ړَ + ی) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج] چت پوزې ، چیت پوزې ، پلن پوزې .

**بُوړۍ** :- (بُوْ + ړَ + یَی) [پ (ګن) اس ، مؤ] د ماشومانو کُولمه چې د بولو په وخت کښې باهر ته راووزي ، کولمه راوتل .

ـــــ **شلول** :- (ګن) اصـ تښې شلول، په یو کار پسې ډېرې منډې ترړې وهل

ـــــ **وتل** :- (ګن) اص . (۱) د ماشومانو د بولو په وخت کُولمه راوتل . (۲) بې وسه کېدل ، زیات کمزورے کېدل .

**بوړے** :- (بَوْ + ړَے) [پ (ګن) اس ، مذ ، وا ، ج : بوړي] ځُټ پولے .د صراحۍ یا بتکې د خولې د بندولو دپاره د کپړې نه جوړ غُنډوس . بُوجه ، کشخولې .

**بوړې**:-(بو+ړې) [پ ، ص ، مؤ] پُوچې خبرې ، عبث او فضوله ږغېدا .

یا وه ګو زبان دراز مه شه که ګورې
برهـــده خبرې مه کړه بوچے بوړے (خوشحال)

ـــــ **خبرې کول**:-(اف) پُوچې خبرې کول،عبث ږغېدل، فضولې خبرې کول

**وړۍ** :- (بو + ړ + یَی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د وړۍ یا مالوچو تاؤ کړې یا غښتلے تار .

**بـوړې بـوړې** :- (بـو + ړِيْ + بُـوْ + ړِيْ) [پ ، ص] (۱) بـې ځانـه ځولـه ، ستړے ستومانه ، ویړې تښې ، شاولے واولے .

ما به په تورو خاورو کښې واچوې
پـکښې بـــــه پرېوځم بوړې بوړې (خوشحال)

(۲) رضامند ، مائله (۳) بل بېل ، جدا جدا .

ـــــ **پرېوتل** :- (اص) ویړې تښې پرېوتل ، شاولې واولې پرېوتل ، بې ځانه بې ځوله ستړے ستومان پرېوتل ، بُوړې بوړې لوئېدل ، زولې زامبولې پرېوتل

ـــــ **کېدل**:-(اص) د یوکارپه کولو کښې ځان بې کچه ډېر ستړے کول

ـــــ **لوئېدل** :- (اص) و ـــ بوړې بوړې پرېوتل .

ـــــ **ورتـه پرېوتـل** :- (اص) څـۀ کـار تـه پـه خپلـه خوښـه او رضـا غـاړه کښېښودل .

**بُوړېدل** :- (بُو + ړې + د + لْ) [پ (ب،خ) مص لا] (۱) د یـو لوښـي څنډه یـا غـاړه ماتېـدل ، بـوړے کېـدل .(۲) د سالمې ډوډۍ نه لږ شان ټکره بېلېدل .

**بُوړېدنه**:-(بُوْ+ړې+دَ + نَه) [پ ، (ب ، خ) حمص] (۱) د لوښي څنډه یا غاړه ماتېدنه (۲) د سالمې ډوډۍ نه لږ شان ټُکره بېلېدنه .

**بوړېې** :- (بو + ړ +یې) [پ (ب، خ) اس ، مؤ] ټوبه ، بګلې ، بـوړۍ، هغـه زمکه چې په غرۀ کښې جوړه وي .او پوله ئې ډېره لوړه او دنګه وي .

**بُوز** :- (بُوْ + زْ) [اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مذ] (۱) د مچۍ یا بمبرې د وزر آواز (۲) د سُرسُرۍ یا پتاخې د چاؤدلو اواز .

ـــــ **وهل** :- (اف) د خمبیره اوړو یـا دُوړې ډېـر زیـات ترشېـدل ، بزېـدل ، ډېر خمبیره کېدل .

**بُوزبو** :- (بُوْ + زْ + بُو) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ترترے ، هغـه مارغـۀ چې د شپې ئې ځان په ونه کښې راځوړند کړے وي او ود حق اواز اوباسي .

**بُــوز بُوزکــه** :- (بُــوْ + زْ + بُــوْ + زْ + کَـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] بوزبوزۍ ، یو قسم سره اوږده ډمبره یا مچۍ .

**بُوزبوزۍ** :- (بُوْ + زْ + بُوْ + زَ + یَی) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـــ بوز بوزکه

**بُوز بُوزے** :- (بُوْ + زْ + بُوْ + زَے) [اف : پ (قاموس) اس، صف، مذ] (۱) بزبزے ، د ډمبرې یا مچۍ اواز ، (۲) د غصې او د ګیلې مانې خبرې ،پټې خبرې ،په کم اواز پټې خبرې .

**بوزغلے** :- (بُوْ + زْ + غَ + لَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بوزغلي] پنیري ، کاڼې ، د بوټو ذخیره .

**بُوزول** :- (بُوْ + زَ + وَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] بنګول ، بزول ، په مچۍ ، ډمبره یا غاړکۍ د بزبز اواز ویستل .

**بوزولے** :- (بُـوْ + زْ + وْ + لَـے) [اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج : بُـوزولي] بنګولے ، بزولے ، د مچۍ ، ډمبرې یا غـاړکۍ نـه د بزبـز اواز راویستلے شوے .

**بُوزونه** :- (بُوْ + زَ + وْ + نه) [اف : پ (قاموس) حمص] بنګونـه ، بزونـه ، په مچۍ یا ډمبره یا غاړکۍ د بزبز اواز ویستنه .

**بُوزوه** :- (بُوْ + زْ + وَه) [اف : پ (قاموس) ص] د خوراک څیز چې خراب ، تُرش ، بدبوداره او باسي وي .

**بوزه** :- (بو + زَه) [اف : پ (قاموس) ص] (۱) د زیات وخت تېرېدنې په وجه د څیز تُرشېدنه او سخاکېدنه (۲) د خمبیرې تُرشېدنه (۳) شراب (اس)

**بوزه** :- (بو + زَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] روژه خور ، هغه څوک چې روژه ئې نۀ وي .

ـــــ **کېدل** :- (اف) روژه خور کېدل ، روژه خوړل ، روژه نۀ ساتل .

**بوزه** :- (بو + زَه) [پ ، امر] (۱) بوزنه ، یوسه ، روان ئې کړه (۲) مړ کړه ، ختم کړه ، فنا کړه .

**بُوزهار** :- (بُو + زْ + ها + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مذ] بینګا ، بزهار ، د مچۍ یا ډمبرې د بز بز اواز .

**بُوزے** :- (بُوْ + زَے) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ] بُوږے ، هغـه اوښ چې غوږونه ئې ځک وي .بُوچے ، بُوچے .

**بوزے** :- (بو + زَے) [پ (مو + ګن) اس ، مذ ، وا ، ج : بوزي] ببـوزے ، ببزے ، پکے .

**بُوزي** :- (بُوْ + زِيْ) [پ (سو) اس ، مؤ] بوزینه ، سره څرمن ،

**بوزۍ** :- (بُوْ + زَ + یَی) [پ (ظفر) اس ، مؤ] تربُوزک ، کچ ببز ، د مخ نه لوپټه تاوول ، مخ په لوپټه کښې پټول .

**بُوزي بنده** :- (بُـوْ + زِيْ + بَ + نْ + ده) [پ (ظفر) ص ، مذ] (۱) موتازه ، بې وسه، مجبور ، د بل لاس ته ناست . (۲) بې هنره ، احمق ، بې وقوف .

**ـــــ کول** :- (اص) موتازه کول ، خپل لاس ته کښېنول ، بې وسه کول

**ـــــ کېدل** :- (اص) موتازه کېدل ، بې وسه کېدل.

**بُوزېدل** :- (بُوْ + زې + دَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] (۱) بزېدل ، د ماستو یا د خمبیرې ترشېدل ، (۲) د مچې د ډمبرې یا د بل شي د وزرو آواز کېدل ، بنګېدل.

**بُوزېدلې** :- (بُـوْ + زې + دْ + لَـې) [اف : پ (قاموس) مف ، مـذ ، وا ، ج: بُوزېدلي] (۱) بزېدلې ، ماستهٔ یا خمبیره تُرش شوي (۲) د مچې یا ډمبرې په زور آواز شوے ، بنګېدلے.

**بُوزېدنګ** :- (بُوْ + زې + دَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و - بوزېدنه

**بُوزېدنـه** :- (بُـو + زې + دْ + نَـه) [اف : پ (قـاموس) حمـص] (۱) بزېدنـه د ماستو یـا خمبیـره تُرشېدنه (۲) د مچې ، ډمبرې یـا د بـل څیـز اواز کونه ، بنګېدنه ، بوزېدهٔ

**بوزېـدونکے** :- (بُـوْ + زې + دُوْ + نْ + کَـے) [اف : پ (قـاموس) اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بُوزېـدونکي] (۱) بزېـدونکے ، ماسـتهٔ یـا خمبیـره ترشـېدونکے (۲) مچـۍ ډمبـره یـا بـل څیـز پـه زور اواز کـوُونکے ، بنګېدونکے.

**بُوزبنده**:-(بُو+زِيْ + نْ + دَه) [اف : پ (قاموس) ص] مست بوتے.

**ـــــ کېدل** :- (اف) بوتے مستېدل.

**بوزینه** :- (بو + زِيْ + نَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بوزینې] (۱) بوزي رنګ کړې شوې څرمن ، چمړه ، (۲) د رنجو هغه رنجړومه چې د څرمنې نه جوړه وي.

**بُوږ** :- (بُوْ + ږْ) [پ (ب ، خ) ص] لُغ : ناست اواز ، د غـاړې د خرابـۍ د وجهې نه د اواز کښېناستل یا ډډېدل.

**بُوږ** :- (بُو+ ږْ) [پ (ب،خ +ګن) اس] جمع، غونډ ، یو ځاے ، خوندي ، پراتهٔ

د خپــــلې خـــونې دېوال که کوږ وي
د خپــــلې خـــونې په څښتن خوږ وي
زیست و روزګار ئې پکښې خوندي وي
لـــوښـــي کـالي ئې په ده کښې بوږ وي (خوشحال)

**بُوږ غـړک** :- (بُوْ + ږْ + غْ + ړَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ،مذ] یو قسم وابښهٔ چې خوړلے شي.

**بُوږه** :- (بُوْ + ږَه) [اف : پ (قاموس) ص] بړه ، بږه ، شلېدلے ، څیرې

**بوږه غوړه** :-(بُوْ+ږَه+غو + ړَه) [پ (ب، خ) اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : بـوږې غوړې] ناسته غاړه چې اواز ډډ شوے وي.بُغه مرۍ،بغ اواز.

**بُوږول** :- (بُوْ + ږَ + وَ + لْ) [پ (ب ، خ) مص مت] د غـاړې اواز په ډېرو چغو کښېنول یا ډډول ، بغول.

**بوږول** :- (بو + ږَ + وَ + لْ) [پ (ګن) مص مت] یو ځاے کول ، جمع کـول ، ګړ دول، غونډول ، بېږول.

**بُوږے** :- (بُوْ + ږَے) [اف :پ (قاموس) اس،مذ ،و ،ج : بُوږي (مؤ : بوږۍ)] هغه أوښ چې غوړونه ئې ورکوټي وي او زیاته وړی لري.بر بړو.

**بُوږېدل** :- (بُوْ + ږې + دَ + لْ) [پ (ب،خ) مص لا] دغاړې اواز په ډېرو چغو کښېناستل یا ډډېدل ، بُغېدل.

**بوږېدل** :- (بـو + ږې + دَ + لْ) + پ (ګن) مـص لا] جمـع کېـدل ، یـو ځـاے کېدل ، غونډېدل

**بوړ** :- (بو + ړْ یا بو + ګ) [اف : پ (قاموس) اس ، مـذ] (۱) سخت او ځیر اواز (۲) غونډه ، ګڼه ، جمع.

**بوړبې** :- (بُوْ + ړْ یا بُوْ + ګْ + بې) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] کشـکره ، کبړکه ، هکهکه ، یو قسم مرغۍ.

**بوړ دروهل** :- (بُوْ + ړْ + یا بُوْ + ګ + دَ + رْ + وَ + هَ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مص مت] څنګ په څنګ تلل ، جُخت او یو ځاے تلل.

**بـوړ غـاړے** :- (بـو + ړْیـا بـو + ګْ + غـا + ړَے) [پ ، اس ، مـذ ،وا ، ج: بوړغاړي (مؤ : بوړغاړې)] هغه څوک چې آواز ئې ناست او سخت وي هغه څوک چې مرۍ ئې ناسته وي.

**بُوړنول** :- (بُوْ + ړْ یا بُو + ګ + نَ + وَ + لْ) [پ ، مص مت] و ـ بُړنول.

**بُوړنېدل**:- (بُوْ + ړْ یا بُوْ + ګ + نې + د + لْ) [پ ، مص لا] و ـ بُړنېدل.

**بُوړه** :- (بُو + ړَه یا بُو + ګه) [پ ، ص] و ــــ بُړه.

تهٔ به څو بې غمه ناست ئې خزشحالي کـړې
زمـــــا غـــــاړه پـــه ژړا درپـسـې بـــوړه (خوشحال)

**غاړه بُوړېدل** :- (اص) اواز کښېناستل.مرۍ کښېناستل ، بُغېدل.

**بوړه** :- (بو + ړَه یا بو ګه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بوړې] لـوړے سیمه ، طرف ، علاقه

**بوړهار** :- (بُوْ + ړْ + هار یا بُوْ + ګ + ها + رْ) [اف : پ (قاموس) اس صف ، مذ] و ــــ بُړهار.

**بُوړے**:-(بُوْ+ړَے یابُوْ+ګَے) [اف : پ (قاموس) اس ص،مذ] و ــ بوزے.

**بوړي غاړي** :- (بو + ړِيْ + یا بو + ګيْ + غـا + ړي) [اف : پ (قـاموس) اس ، ج : مؤ] د مرۍ کښېناستل چې اواز ځیر شي.

**بُوس** :- (بُو +سْ) [پ، ه، بُهوس، بهوسه، بُهس، اس، مذ ، ج] (۱) پُوړ ، پروړه، (ګن) بُوسه (۲) بې کاره، بې خونده [او بې مـزې (۳) بُـوخ ، مرور ، پړسېدلے.

**بُوس ایستل** :- لُغ .د غلې نه بُوس ببلول ، پُوړ یا پروړه جدا کول. اص : باد ایستل، د څهٔ خبرې غږل ، څهٔ خبره ډېره ډېره کول ، ډېر وهل.

**بُوس په خولهٔ کول** :- (اص) چاته دوکه ورکول ، چا سره چل کول ، چاته څهٔ طمع ورکول او بیا هغه کار نهٔ کول.

**بُوس په خولهٔ کېدل**:- (اص) دوکه کېدل ، د ډېر کوښښ نه پس هم ناکـام کېدل، څهٔ کار نهٔ کېدل.

**بُوس ورکول** :- (اص) (۱) پوړ یا پروړه ورکول (۲) د چا نـه پـه چـل ول او خوشامندو کار ایسـتـل (۳) بې کـاره خوراک ورکـول ، دوکـه ورکـول (۴) د بوسو په بدل کښې د غوا نه پۍ اخستل.

**تر بُوسو لاندې اوبهٔ بوتلل یـا بېـول** :- (لغ) د پُوړ یـا پـروړې لاندې پټې اوبهٔ تېرول .اص : په پټه یو کار کول ، د خپل زړهٔ غلا نهٔ څرګندول ، چا سره ټګي یا دوکه کول.

**بُوس بادول** :- (اص) تش بُوس بادول (۱) بې کـاره او خوشې خبرې کـول ، بې مطلبه ژغېدل ، ډوزې ویشـتـل (۲) داسې کـار پسـې لګېـدل چې نتیجه ئې هېڅ نهٔ را اوزي

**دُبوسو سځے جوړول** :- لُغ. د غوا بچے چې مړ شي نو څرمن ترې اوباسي. هغه د بوسو نه ډکه کړي او د لوشلو په وخت ئې ورتـه د بچي په ځاے اودروي.اص : ډېر وهل ، ښهٔ ټکول ، په وهلو وهلو پستول.

**بُوسات** :- (بُو + سا+ تْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] تاثیر ، اثر.

**ـــــ کول** :- (اف) اص.تاثیر کول ، اثر څرګندول.

**ـــــ کېدل** :- (اف) اص.تاثیر کېدل ، اثر څرګندېدل.

**بُوساړه** :- (بُـو + سا + ړَه) [پ اس ، مـؤ ، وا ، ج : بوساړې] (۱) پالـه ، د بوسو انبار چې ښهٔ دربلے شوے وي (۲) د وچو وښو انبار.(۳) هر څیز چې پړسېدلے وي.(۴) غټ سړے چې لټ او ناراسته وي.

**بُوساړي** :- (بُو + سا + ړِي) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] اړتـاوکې خبرې ، بې بنیاده وینا ، اوائي خبرې ، بُوس بادي.

**ـــــ کول** :- (اص) اوائي خبرې کول ، بې بنياده ژغېدل ، هسې څۀ ويشتل ، ډوزماري کول۔

**بـــوس بـــادو** :- (بـــوس + بـــا + دُو) [پ ، اس ، مـــذ ، وا] تشـــې ډوزې ويشتونکے ، ډُوزمار ، لاپو۔

**بُـوس بـادي** :- (بُـوس + بـا + دِيْ) [پ ، اس ، مـؤ ، وا] ډُوزې ، عبـث او خوشې خبرې۔

**بُـوس برباد** :- (بُـو + سْ + بَ + رْ + بـا + دْ) [پ ، اس ، مـذ] عبـث ، بـې فائدې ، بې ګټې بې وتې۔بې مطلبه ، ضائع ، خوشې۔

**بوستان** :- (بو + سْ + تا + نْ) [فا ، اس ، مذ ، وا] (۱) باغ ، باغيچه

نـــۀ پــــه باغ نـــۀ په بوستان په ګلزار ګرځي

خراب زړۀ مې هم هورې دے چې يار ګرځي (عبدالقادر)

(۲) په فارسی ژبه کښې د شيخ سعدي صاحب ليکلے منظوم کتـاب (۳) پـه بلوچستان کښې يو کلے (۴) يو عام نوم۔

**بُوس خوسے** :- (بُو + سْ + خو + سَے) [اف : پ (قـاموس) اس ،مـذ] د غـوا د مړ بچي څرمن چې د بوسو نـه ډکـه شـوې وي ۔د بوسـو سـخے ، ګُوډے۔

**بُوسړ** :-(بُو+س+َړْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ] لړلے اور، کيرلے انګار

**بُوسکارل** :- (بو + سْ + کـا + رَ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص مـت] اس يـا غوايه د منډې دپاره پارول۔د تېزولو دپاره اس تـه پونده او غوايـۀ تـه چُوکه ورکول۔

**بُوســکارلے** :-(بُـو+سْ+کـا+رْ+لَے) [اف : پ (قـاموس) مـف، مـذ ، وا ، ج : بُوسکارلي (مؤ،وا: بوسکارلې) ] تېز کړے شوے ، چابک کړے

**بُوســکارنګ** :- (بُـو + سْ + کـا + رَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قـاموس) حمـص] و ـ بوسکارنه۔

**بُوســـکارنه** :- (بُـــو + سْ + کـــا + رْ + نَـــه) [اف : پ (قـــاموس) حمـــص] بوسکارنګ ، تېزونه ، چابکونه۔

**بُوسکارووُنکے** :- (بُو + سْ + کا + رَ + وُو + نْ + کَے) [اف : پ (قـاموس) اس فـاع، مـذ ، وا ، ج : بُوسـکاروُونکي ، (مـؤ ، وا: بوسـکاروُونکې) ] تېزووُنکے ، چابکوُونکے۔

**بوسکي** :- (بَو +سْ + کِيْ) [اس ، مؤ ] و ـــــ بوسکي۔

**بوسه** :- (بو + سه) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بوسې ] خولۀ ، ښکلول، چـپـي ، په څۀ څيز د مينې له کبله شونډې کښېښول۔

چــې بـــوسه ورنه اخلي کله کله

ميا جناب ته دې په زنه خال ساته

**ـــــ اخستل** :- (اص) خولۀ اخستل ، ښکلول ، چـپـي کـول ،پـه څۀ څيـز د مينې له کبله شونډې کښېښول۔

اخستے نۀ شي بوسه په پېغامونو (حميد)

**ـــــ غوښتل** :- (اص) خولۀ غوښتل ، د خولې سوال کول ، چپي غوښـتل ، د ښکلولو اجازت غوښتل۔

چـــې بــــوسه غـواړي له مخه د ګلرخو

که شبنم غوندې ګريان دے نۀ دے ګرم (حميد)

**بُوسه** :- (بُو+سه) [پ [، ه : بُهوسه ، اس مؤ] وــــ بُوس

**بُوسه** :- (بُو + سه) [اف: پ (قاموس) ص] پړسېدلے ، ډډو ، ډډبه

**بوسيده** :- (بـو + سِي + ده) [فـا ، ص] مښـلے ، شـلېدلے ، څيـرې شـوے ، زوړ وروست۔

د نيام په شان ئې تېغ بوسيده راوړۀ

الامـــان دې تاله دے تنګو استينو (کاظم خان)

**بـوش** :- (بـو + شْ) [پ (ب ، خ ۀ ه : بـانس ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بوشـونه] بانس ، بانس ، يو قسم لرګے چې پېوند پېوند وي۔مېـنځ ئې ډډ وي او د تنبوانو ستنې ترې جوړېږي۔

**بُوشـناس** :-(بُـوْ + شِ + نـا + سْ) [فـا تـر،اس ،ص ، مـذ] د بـوئي اخسـتو ماهر ، بوئي کښ

**بوښت** :- (بو + خْ + تْ يا بـو + شْ + تْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، (مؤ ، وا: بوښته ، ج : بوښتې) ] (۱) په چيکړه ختهه يا داسې بـل څيـز کښې ننوتے يا انښتے۔(۲) په څۀ کار کښې لګيا ، نښتے يا مصروف

**بوښت توب** :- (بوښت + تو + بْ) [اف : پ (قـاموس) حمص ] بوښت تيـا ، بوښت والے ، په چيکړ ، ختهه يا داسې بل څيز کښې انښته۔

**بوښــتوالے** :- (بـو + خْ + تَ + وْ + لَـے يـا بـوش + تْ + وا + لَـے) [اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــــ بوښت توب۔

**بوښتول** :- (بو + خْ + تَ + وْ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص مـت] انښـلول، ننه ايستل ، چيکړ ، ختهه يا په بل څيز کښې څۀ انښلول

**بوښــتونګ** :- (بـو + خْ + تَ + و+ نْ + ګْ) [اف : پ (قـاموس) حمـص] و ـــــ بوښتونه۔

**بوښــتونه** :- (بـو + خْ + تَ + وْ + نـه يـا بـو + شْ + تَ + و+ نـه) [اف : پ (قـاموس) حمـص ] انښـلونه ، پـه چيکـړ ، ختهـه يـا بـل څيـز کښـې انښلونه۔

**بوښتوُونکے** :- (بَو + خْ + تَ + وُو + نْ + کَے يا بو + شْ + تَ + وُو+ نْ + کَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بوښـتوونکي (مـؤ،وا: بوښتوُونکې) ] په چيکړختهه يابل څيز کښې انښلوونکے۔

**بوښته** :- (بو +خ + ته يا بو + شْ + تـه) [اف : پ (قـاموس) اس ،مؤ، وا ، ج : بوښتې ] جبه ، دلدل۔

**بوښــتيا** :- (بـو + خ + تْ + يـا / بـو + شْ + تْ + يـا) [اف : پ (قـاموس) حمص ] و ـــــ بوښت توب۔

**بوښــتېدل** :- (بـو + خْ + تـې + دْ + لْ ، يـا بـو + شْ + تـې + د + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] په چيکړ يا ختهه کښې انښتل۔

**بوښــتېدنګ** :- (بـو + خْ + تـې + دَ + نْ + ګ يـا بـو + شْ + تـې + دَ + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــــ بوښتېدنه۔

**بوښــتېدنه** :- (بـو + خ + تـې + دْ + نـه يـا بـو + شْ + تـې + دْ + نـه) [اف : پ (قـاموس) حمـص ] پـه چيکـړ ، ختهـه يـا بـل څيـز کښـې انښــتنه ، بوښتېدنګ ، بوښتېدۀ۔

**بوښتېدونکے** :- (بو + خْ + تې + دُو + نْ+ کَے يا بـو + شْ + تـې + دُو + نْ + کَے) [اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ،وا ، ج : بوښـتېدونکي ، (مـؤ ، وا: بوښتېدونکې) ] په چيکړ ، ختهه يا بل څيز کښې انښلېدونکے۔

**بوښــتېدۀ** :- (بـو + خ + تـې + دۀ يـا بـو + شْ + تـې + دۀ) [اف : پ (قـاموس) حمص ] و ـــــ بوښتېدنه۔

**بوښند** :-(بُو+ خَ + نْ + دْ يا بُـو + شَ + نْ + دْ) [اف : پ (قـاموس) ص ، مـذ (مؤ ، وا: بوښنده) ] غـمجن ، خفه ، ظهير۔

**بوښه** :- (بو + خه يا بو + شه) [اف : پ (قاموس) اس ، مـؤ، وا ، ج : بوښـې ] د ابادۍ نه لرې اوچه شاړه مېره ۔

**پر بوښو ګرځېدل** :- (اف) اص ۔پر بوښو مـخ نيـول ، سـر وهلـے بـر وهلـے پـه مېرو ګرځېدل ، د خلقو نه لرې تښتېدل۔

**پر بوښو مخ نيول** :- (اف) اص۔و ـــــ پر بوښو ګرځېدل۔

**بُو طالب** :- (بُو + طا + لِ + بْ) [ع ، اس ، مذ] ابـو طالـب ۔د حضـرت علـي رض پلار ، د رسول پاک ص ترۀ۔

**بوطيقا**:-(بو+ طيْ + قا ) [ ع ، اس ] کتاب الشعر ، د ارسطو تصنيف

**بُـو عبيـده** :- (بُـو + عُ + بـيِ + دَه ) [ ع ، اس ، مـذ ] ابـو عبيـده ـ د حضرت ابوبکر رض او حضرت عمر رض په زمانه کښې سپه سالار وو ـ د رسول کريم صلی الله عليه وسلم صحابي او د عشره مبشره نه ؤ ـ

**بـوغ** :-(بـو+غْ) [ پ ، اس،صـوت ،مـذ ] (۱) خـراب او ناسـت غـږ ـ (۲) بـد رنګ ، بد شکله

په دا هسې قباحت چې د ے پيدا د ے

د سړي نـه بـه هـم بـل پيدا وي بوغ (خوشحال)

(۳) ب ، خ : باغ ، باغيچه ،ج : بونونه ،بوغينه ـ

**بوغان** :- (بو + غا + نْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] و ـــ باغوان ـ

**بُـوغ** :- (بـو + غ ) [ اف : پ (قـاموس) اس ] (۱) د لرګـي کاسـه ، تـوتـۍ يـا تتـۍ ، کونډۍ ، (۲) غـږ (۳)د سـپين سره يـو ځـا ے وئيلـے شـي لکـه سپين بوغ ـ

**بُـوغ** :- (بُـو + غْ ) [ پ (ب، خ) ص۳ ، مـذ (مـؤ ، وا : بوغـه ، ج : بـوغـې) ] بُوک، بُوق، پرمخ، داسې تيټ شو ے چې روستاړي ئې راوتي وي ـ

**بُوغۍ** :- (بُوْ + غَۍ ) [ اف (ګن)(اس ، مؤ ، وا ، ج : بوغيانې) سيټې، ټُور توری ، شپېلک ـ

**بُوغ توب** :- (بـوغ + تـو + بْ ) [ پ ، اس ، ص ، مـذ ] بوغتيـا ، بوغـوالـے ، اوازکنبناستل ، غاړه کنبناستل ـ

**بوغتيا** :- (بوغ + ت + يا) [ پ ، اس ص ، مؤ ] و ـــ بوغ توب ـ

**بوغـده**:- (بـو + غْ + ده ) [ اف : پ (قـاموس) اس، مـؤ ، وا ، ج : بوغـدې] پيش قبضه ، چاړهٔ ـ

**بوغـدۍ** :- (بُـو + غْ + دَ + ی ) [ پ (سـو) اس ، مـؤ] د بـارودو د خلاصـولو دپاره په غرهٔ کښې لو ے سور ے يا غار چې کمران پرې الوزوي ـ

**بُـوغره** :- (بُـو + غْ + ره ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بُـوغر ے] بُرقعه ، نقاب ـ

**بُوغلئے** :- (بُو + غْ + لْ + لئے ) [ اف : پ (قاموس) اس، مـذ ] هغـه ښکلے او ډولے رومال چې د ناوې د کور نه سرو ته ورکولے شي ـ

**بوغمه** :- (بو + غْ + مه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بوغمې] بُغمه ، د مرۍ د پرسوب مرض ـ

ـــــ **کېدل** :- (اص )د څهٔ غم د وجهې نه د مرۍ پړسېدل ـ

**بوغمه** :- (بو + غْ + مـه ) [ پ (سو) اس ، مؤ ، وا ، ج : بـوغمې] د خېټې يا ګېډې خرابي ـ

**بوغمه دار** :- (بوغمه + دا + رْ ) [ پ (سو) ص ، مذ] د خوراک هغـه څيزونـه چې بوغمه پيدا کوي ـ

**بوغنه** :- (بـو + غْ + نـه ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بـوغنې] يـو بوټے چې نرۍ پاڼې ، سور ګل او ورکوټې ازغي لري ـ

**بُوغو** :- (بُو + غُوْ [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بوغوګان] برغـو ، لويه ترۍ ، لويه شپېلۍ ، ښکر ـ

**بوغوالے** :- (بو + غْ + و + لَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ] و ـــــ بوغ توب ـ

**بُوغول** :- (بُو + غَ + وْ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] و ـ بغول ـ

**بُوغول** :- (بُو + غَ + وْ + لْ ) [ پ ، (ب، خ) مص مت] بُو کول ، داسې ټيټول يا ښکته کول چې روستاړي ئې شاته را اوزي ـ

**بوغول** :- (بُو + غَ + وْ + لْ ) [ پ (ب ، خ ) حمص ] بُوکونه ، ټيټونه ، داسې ښکته کونه چې روستاړي ئې را اوزي ـ

**بوغونه** :- (بو+غَ + وْ + نه ) [ اف : پ (قاموس) حمص] اواز کنبـنونه، غـږ خرابونه ـ

**بوغه** :- (بو + غه ) [ اف : پ (قاموس) ص مؤ] د تماکو يا چرسو نشه

ـــــ **کول** :- (اف) اص ـ د تماکو يا چرسو نشه کول ـ

ـــــ **کېدل** :- (اص) د تماکو د چرسو نشه کېدل ـ

ـــــ **وهل** :- (اص) د چرسو د چيلم کش راکښل ـ

**بُوغېـدل** :- (بُـو + غـې = دْ + لْ ) [ پ ، (ب ، خ ) مـص لا ] بُوکېـدل ، داسـې ټيټېدل چې روستاړي ئې شاته را اوزي ـ

**بوغېـــدل** :- (بــو + غـــې + دْ + لْ ) [ اف : پ (قـــاموس) مـــص لا ] اواز کنبناستل ، اواز خرابېدل ـ

**بُوغېدنه** :- (بُو + غې + دْ + نه ) [ پ ، (ب، خ ) حمص] بُوکېدنه ـ

**بوغېدنـــه** :- (بــو + غـــې + دْ + نـــه ) [ اف : پ (قـــاموس) حمـــص] اواز کنبناستنه ، د مرۍ نه اواز صفا نهٔ راوتنه ـ

**بـوق** :- (بـو + قْ ) [ پ (ظفـر) اس ، مـذ ] (۱) بُوغُـو + ښـکر (۲) غـټ بـانګي چرګ ـ

**بُوقره** :- (بُو+ قْ + رَه ) [ پ ،اس ، مؤ] برقعه ، بورقه ، بولقه ـ

**بوک** :- (بو + کْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بوکونه ، بوکان] د اوښ يا غوايهٔ کُب ـ

**بُـوک** :- (بُـو + کْ ) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، (مـؤ ، وا : بوکـه ، ج : بُـوکې ] (۱) پړمخ ، بوق ، بوغ (۲) په څلوري په مزکه پروت (۳) کوږ ، بهرتـه راوتلے ، بقې ـ

لابـــه کلــــه هغه ګل چمن ته راشي

د نرګس ګلونه ګوري سترګې بُوکې (خوشحال)

ـــــ **اړول** :- (اص ) پړمخې ويشتل ، اپوټه اړول ـ

ـــــ **اوښتل** :- (اص ) پړمخې پرېوتل ، اپوټه پرېوتل ، بوک پرېوتل ، بوقـه کونه پرېوتل ـ

ـــــ **بوک کېدل** :- (اص ) پورته پورته کېدل ، هسې ځان ښئيل ـ

ـــــ **پرېوتل** :- (اص ) و ـــــ بُوک اوښتل ـ

ـــــ **را ايستل**:-(اص ) روستاړي باهرته راويستل،څهٔ څيز نېغ را ايستل ـ

ـــــ **راوتل** :- (اص ) نېغ راوتل ـ روستاړي باهر راوتل ـ

ـــــ **مخ نيول** :- خفـه کنبناستـل ، غصـه مـخ نيـول ، تريـو تنـد ے او سخا مخ کنبناستل ـ

**بوکان** :- (بو + کا + نْ ) [ اف ک پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بوکانونـه ] کُب ، کبب ، کويان ـ

**بُوکانه** :- (بُو + کا + نَه ) [ اس ، مؤ ، وا] و ـــ بکيانه ـ

**بوکر** :- (بو + کَ + رْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا : بـوکره ، ج : بوکرې ) ] غونډ ويخـے څيز ، چې تر سره پورې لړلړ نر ے شـو ے وي ـ مخروط ـ

**بوکره** :- (بُو + کْ + ره ) [ پ ، اس ،مؤ ، وا ، ج : بوکرې] بُرقعه ـ

**بوکره**:- (بو + کْ + ره ) [ پ ، اس ، مؤ، وا ، ج: بوکرې] بورکه ، بوقه بوکه ، هغه ډول چې د کوهي نه اوبهٔ پکښې راويستلے شي ـ

**بوکرۍ**:-(بو+کَ+رۍ ) [ اف : پ (قاموس ) اس ،مؤ] يو شين لو ے بوټے ـ

**بــوکر ے** :- (بُــو + کَ + رَ ے ) [ اف : پ (قــاموس) اس، مــذ ، (مــؤ ، وا: بوکرۍ ) ] هغه ماشوم چې تـازه تـازه د مـور د تـي نـه منعـې کـړ ے يـا پرېکړ ے شو ے وي ـ

**بـوکر ے** :- (بُو + کَ + رَ ے ) [ پ ، اس ص ، مـذ ،وا ، ج : بـوکري (مؤ، وا: بُوکرۍ ) ] نېغکے ، نېغ ، نېغ کېدونکے ـ

**بوکوالے** :- (بـو + کْ + وا + لَـے ) [ پ ، حمـص] بُوکېدنـه ، پړمخ کېدنـه ،

بوکېدۀ.

**بُوکول** :- (بُو + کَ + وْ + لْ) [پ، مص مت] (۱) پړ مخ کول ، ټيټول داسې راټيټول چې کوناټې ئې باهر تـه اُوزي(۲) د کنځلو پـه ډول هـم وئيلې کېږي (۳) سلامي کول ، په زور راګېرول.

**بُوکوُونکے** :- (بُو + کَ + وُو + نْ + کَے) [پ، اس، فا ع ، وا ، ج : بوکوُونکي ج (۱) پړمخـې کوُونکے ،دچاکونـاټې باهرتـه راويســتونکے (۲) د کنځلو پـه ډول وئيلې کېږي

**بُوکېدل** :- (بُـو + کې + دْ + لْ) [پ ، مـص لا] (۱) پړ مخې کېـدل ، داسې ټيټېدل چې کوناټې ئې بـاهر تـه را اُوزي . (۲) د کنځلو پـه ډول وئيلې کېږي.

**بُوکېدنـه** :- (بُـو + کـې + دْ + نَـه) (۱) بُوکـوالے ، پـړمخ کېدنـه ، بوکېـدۀ (۲) سلامي کېدنه ، پړه مننه.

**بُوکېـدُونکے** :- (بُـو + کـې + دُو + نْ + کَـے) [پ ، اس ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : بوکېدونکي] (۱) پړمخې کېدونکے ، اپوټه کېدونکے (۲) د کنځلو پـه ډول وئيلے کېږي (۳) د يري نه سلامي کېدونکے.

**بُوکېدۀ** :- (بُو+ کې + دَۀ) [پ ، حمص] و ـــ بوکېدنه.

**بوګ** :- (بو + ګ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ (مؤ ، وا: بوګـه ، ج: بـوګې) ] ډډ ، هغه څيز چې مېنځ ئې خالي وي.

**بُوګر** :- (بُوْ + ګَ + رْ) [پ ، اس ، مذ ، (مؤ ، بوګره) ] د سر غشـي بُـوټے ، د نل په شان وړوکے بوټے چې جاروګان ترې نه جوړېږي.

**بـوګر چاڼـه** :- (بـوګر + چـا + ڼَـه) [پ (سـو) اس ج هغـه شـنې پـاڼو والـې څانګې او بوګر وغېره چې د لهرو دپاسه اچولے شي او د پاسه پرې خاوره اچوي.

**بوګرمار** :- (بـو+ ګَ + رْ + مـا + رْ) [پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بـوګر ماران، (مؤ ،وا: بوګر ماره ، ج : بوګر مـارې) ] (۱) بـوګرے کـوُونکے ،د بل مزکه بغېر د برخې خوړونکے (۲) هغه سړے چې د جا روګـانو دپاره بوګرے راوړي او خرخوي ئې.

**بوګره** :- (بو + ګْ + رَه) [ه ، اس ، معر] په نور ختيځ پاکستان کښې يـوه ضلع.

**بـوګرے** :- (بـو+ ګَ + رے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] (۱) پـه خپـل دهقان بغېر د څۀ برخې ورکولو لړه شان مزکه کرل (۲) خپـل ګاونډي يا بل حقدار ته لړه شان مزکه د امداد په ډول ورکولو ته وائي.

**بـوګرے** :- (بُـو+ ګَ + رَے) [پ ، اس ، ص ، مـذ ، (مـؤ ، وا: بـوګرۍ)] ګستاخ سړے ، بې ادبه.

**بـوګړا** :- (بُـو + ګْ + ړا) [اف : پ (قـاموس) ص] (۱) حـلال شـوے . (۲) ځورولے ، څۀ څيز خامخا نقصـان تـه رسولے شوے (۳) څۀ مړدم خور وژلے شوے (۴) چنه ، يوه غله.

ـــــ **کـول** :- (اص) (۱) حلالـول (۲) زورول ، څـۀ څيزخامخـا نقصـانول (۳) مړدم خور وژل (۴) چنه خيشتول.

ـــــ **کېـدل** :- (اص) (۱) حلالېـدل (۲) زورېـدل ، څـۀ څيـز خامخـا نقصانېدل (۳) مړدم خور وژلے کېدل (۴) چنه خيشتېدل.

**بوګړي** :- (بُوْ + ګْ + ړَ + ی) [پ ، اس ، مؤ] چيچړې ، ګګڑي.

**بوګړے** :-(بُو+ګْ+ړَے) [پ (صو) اس،مذ] چاته بې برخې پټے ورکول.

**بوګه**:-(بُو+ګه) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج: بوګې] هندوانه.

**بـوګی** :- (بـو + ګْ + ی) [اس ، مـؤ] (۱) خاورينـه صـراحي (۲) اف ـ د کاريز وران کوهے

**بوګي**:- (بو +ګِيْ) [انګ ، اس، مؤ] د ريل ډبه.

**بول** :- (بَو + لْ) [پ ، اس ،مذ] وينا ،لوظ ، وعده ، قول ، نېته.

که وفاکا،که جفا خپله رضا کا
پـه خوبانو بالانۀ دے بول د چا (حميد)

**بول** :- (بْ + وْ + لْ) [پ ، ع ، اس، مذ] غُل متيازې.

چې هنر ګڼې ياري د زورورو
زۀ رحمان کومه بول په دا هنر (رحمان)

ـــــ **ايستل**:-(اص) (۱) غُل متيازې بيول (۲) يرول ـ ډرول ، بول بندول.

ـــــ **بندول** :- (اص) يرول ، ډرول .

ـــــ **بندېدل** :- (اص) (۱) غُل متيازې بند کېدل (۲) يرېدل (۳) تنګېدل ، مجبوره کېدل.

ـــــ **کول** : لُغ ـ غل متيازې کول، اص: د څۀ څيز نه کرکه کول ، ډېر يرېدل

ـــــ **وتل** :- (اص) (۱) غل متيازې بهېدل (۲) پرېدل ، ډرېدل.

ـــــ **وچېدل** :- (اص) يرېدل ، ويرې او ډار نه بول نۀ راتلل.

**لوے بول** :- (اص) غَل ، ډکې متيازې.

**واړۀ بول** :- (اص) متيازې.

**بـول** :- (بـو + لْ) [ه ، اس ، مذ] (۱) خبره ، قـول ، کـلام ، وينـا (۲) بنـد د سندرې سر .

ـــــ **چال** :- (اص) خبرې اترې ، ژغېدا .

ـــــ **بندول** :- (اص) خبرې بندول ، پرېښودل.

ـــــ **کښېښول** :- (اص) لوظ کول ، نېټه مقررول ، وعده کول.

**بولاق** :- (بو + لا + قْ) [پ ، اس ، مذ ] (۱) د ختکـو د قبيلـې يـوه پېنـه يـا څانګه (۲) د پوزې يو کالے يا زېور ، پېزوان.

**بولټن** :- (بو + لْ + ټَ + نْ) [انګ ، اس ، مذ] د صوبه سرحد يـو انګرېـز افسر '' چې د هغۀ په نوم په لېډي ريډنګ هسپتال پېښور کښـې يـو وارډ هم جوړ شوے دے ''.

**بـول ډال** :- (بـو + لْ + ډا + لْ) [پ ، اس ، ص] حکم ياوينـا منلـو تـه هـر وخت تيار ، مستعد ، اماده .

**بولـغ** :- (بـو + لِ + غْ) [پ ( ب ، خ + وز) ص ، مـذ (مـؤ ، وا: بولغـه ، ج : بولغې) و ـــ بالغ.

**بُولغـه** :- (بُـو + لْ + غـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بُـولغې] بولګه ، بېلګه ، د ورک او د غلا د مال نښاني .

**بولقه** :- (بو + لْ + قه ) [پ (سو) اس، مؤ ، وا ، ج : بولقې] و ـ برقعه.

**بُولک** :- (بو + لَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ــ بلوک س

**بولګه** :- (بو + لْ + ګه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج :بولګې] و ـ بولغه.

**بولل** :- (بو +لَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] و ــ بلل.

که زۀ نۀ وے تا به ځان پله بولل ځوک
په پالنګ به دې دا هسې درختل ځوک (خوشحال)

**بوللـه** :- (بـو + لْ + لَـه) [اف : پ (قـاموس) ص ، مـؤ ، وا ، ج : بـوللې] قصيده ، د نظم يو قسم .

**بوللے** :- (بو + لْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف،مذ ، وا ، ج : بوللي، (مؤ ، وا: بوللے) ] و ـــ بللے.

**بولُونکے** :- (بو + لُو + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فـا ع ، مذ، وا ، ج : بولُونکي ] و ـــ بلوُنکے.

**بوله** :- (بو + لَه) [اف : پ (قاموس) اس ،مؤ] (۱) د زوم د طرف نـه د سـخر خېلخانې ته ډوډۍ يامېلمستيابلنه (۲) ډنډوره، نغاره ، ډمامه.

ـــــ **کول** :- (اص) ډنډوره کول ، نغره وهل ، ډمامه کول ـ نعره کول

**بوله** :- (بو + له) [پ . ص . مذ ، وا ، ج : بوله ګان] بولګے ، بودل، ساده

، کم عقل ، ناپوهه ، بُدلے۔

چې دیده دانسته سود ته ځان بوله کړي
دا مــکار پــه تاجرانو حساب نهٔ دے (علیخان)

**بولهب** :- (بُو + لَ + هَبْ) [ع ، اس معر ، مذ ، وا ] د رسول کریم صلی الله علیه وسلم د یوترهٔ کُنیت چې کافرپه دنیاتېرشوے دے۔

**بولي** :-(بو+ لِيْ) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بولۍ] د نیلام د قیمت اواز۔

**ـــــ کول** :- (اص) د نیلام په څیز د قیمت اواز کول ، نیلامي کول۔

**بولي** :- (بو + لِيْ) [ پ ، اس ، صف ] (۱) غواړي ، اواز کوي ، غږ کوي ، ناري وهي (۲) نام لري ، داسې نومېږي ۔متل :- '' اتې وران سهي چې امرودین لالادې بولي ''۔

**بولي** :- (بو + لي) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د ناوې د خپل پلار په کور کښې مېلمستیا۔

**بولۍ** :- (بو + لَ + ی) [ پ ، اس ، صو ، مؤ] د فوځي تربیت غږ۔

**بولي** :- (بُو + لي) [ پ ، اس ، ج ] غُل مُتیازې۔

**بولیویا** :- (بو + لِيْ + و + یا ) [انګ ، اس ، معر] په جنوبي امریکه کښې یوه جمهوریه چې په کښې اکثره آبادي د ریډ انډینز ده۔

**بوم** :- (بو + مْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] سست ، نااموخته ، ناګڅے ، لټ ، هغه غوایئے یا غوځکے چې جوتې شوے نهٔ وي۔

**بُوم** :- (بُو + مْ) [فا ، اس ، مذ ، وا] کُنګ ، ګونګے۔

مستې ښکاره کړه غم اواره کړه
ځــان کــناره کړه له زاغـه بومه
غافلان پرېږده کانړے پرې کېږده
طــوطـــي چغېږي بلبله راشه (جناب ګل)

**بومي** :- (بُو+ مي) [ پ (ظفر) اس ، ص ] استوګن ، اوسېدونکے۔

**بُومیا** :- (بُو + مْ + یا ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) پېشوا ، راهنما ، لار ښودونکے (۲) استوګن ، اوسېدونکے۔

**بومیــا ګلــوي** :- (بُومیــا + ګَ + لْ + وي) [اف : پ (قــاموس) اس ص] رهنمائي ، پېشوائي۔لار ښودنه۔

**بومیه** :- (بُو + مْ + یهٔ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] بدرقه، بدرګه۔

**بون** :- (بو + نْ) [جرمني ، اس ، مذ] د قبلئیز جرمني د تخت ځاے او مشهور ښار ، ددې ځاے پوهنتون ډېر مشهور دے۔

**بُونجے** :- (بُو + نْ + جَے )[ پ ، ص ، مذ ، وا ، ج :بونجیان ، بونجي (مؤ ، وا : بونجۍ ، ج : بونجیانې)] (۱) مونجے ، چت پوزے ، هغه څوک چې پوزه ئې وړه یا عیب جنه وي (۲) مرڅین ، جینجڼ ، مراوے۔

**بونډ** :- (بــو + نْ + ډْ) [اف : پ (قــاموس) ص ، مــذ] ټیــټ ، مونـډے ، پرېکړے ، کاټ شوے۔

**بونـډاقر**:- (بــو + نْ + ډا + قَ + رْ) [ پ (مهمند) اس ص ، مذ] (۱) لکـۍ ویستلے (۲) اص۔تنګي او لنډې جامې اغوستونکے ، ټیډي۔

**بونډاقر** :- (بو + نْ + ډا + قَ + رْ) [ پ (سو) اس ، ص ] ونه چې څانګې ئې ترې پرېکړې شوي وي۔شونډ مونډ ، بونډه قرقي۔

**بونډه** :- (بو + نْ + ډَه ) [ پ (سو) اس ، مؤ ، وا ، ج : بونډې] (۱) مسته پېغله جینۍ (۲) د سؤر مـاده چې مستې پرې راشي یعني نوې نوې خوانه شوې وي۔

**بونــډه ګوتــه** :-(بــو+نْ +ډه +ګـو + تـه ) [اف : پ (قــاموس) اس ، مـؤ ، وا] مسواکه ګوته ،د کټې ګوتې سره لګېدلې ګوته ۔

**بونــډے** :- (بــو + نْ + ډَ ے ) [ پ ، ص ، مــذ ، وا ، ج : بونــډي مـؤ ، وا : بونډۍ ] (۱) سر پرېکړې ورکوټے لرګے (۲) هغه ځناور چې لکۍ ئې پرې وي ، مونډے۔

**بُونړ** :- (بُو + نړ) [ پ ، اس ، مذ ] ګونړ ، د پوزې مرض چې د بوئیں قوت په کښې ورک شي۔

**بُونړ** :- (بُو + نړ) [ پ ، اس ، صو مذ] د مچانو ، مچو یا بنبرو د وزرو اواز ، بڼ ، بڼ بونړ۔

**ـــــ ورتـه نـهٔ وهـل** :- (اف) اص ۔غلے کېـدل ، خاموشـه کېـدل ، چـپ کښېناستل ، پټه خولهٔ کښېناستل۔

**ـــــ ورته وهل** :- (اف) اص۔د بل چا په مقابله کښې ورو ورو ژغېدل

**بُونړ** :- (بُـو + نړ) [ پ ، ه ، بـان ، اس ، مـذ ] د کټونو د پېرلـو څیـز ، واڼ ، کټ بونړ ، باڼ ۔

**بُونړکے** :- (بُـو + نړ + کَے ) [اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مذ ، وا ، ج: بونړکي ] د مچانو ، مچو یا بل داسې څیز د وزرو اواز۔

**بُونړل** :- (بُو +نړَ + لْ) [پ ،مص مت ] پېرل، کټ یا بل څیز په بونړ پېرل، بنړل

**بُونړلے** :- (بُو + نړ + لے ) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : بونړلي ، (مؤ ، وا: بونړلې ] پېرلے، پېرلے شوے ، بنړلے۔

**بُونـړول** :- (بُـو + نړْ + وَ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص مـت ] بنړول ، مچـان ، مچۍ یا ډنبرې الوزول۔

**بُونړولے** :- (بُو + نړ + وَ + لَے ) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ،ج : بونړولي (مؤ ، وا: بنړولې) ] بنړولے ، مچان یا ماشي وغېره الوزلے۔

**بُونړوُونکـے** :- (بُــو + نړَ + وُوْنْ + کَــے ) [ پ، اس ، فــا ع ، مــذ ، وا ، ج : بونړوُونکي ] پېرُونکي۔

**بُونړوُنه** :- (بُـو + نړ + وُ + نـه ) [اف : پ (قـاموس) حمص ] مچـان ، ماشـي ، ډمبرې یا داسې نور څیزونه بنړونه یا الوزونه۔

**بُونړوُونکے** :- (بُو + نړ + وُو + نْ + کَے ) [اف : پ (قـاموس) اس ، فـا ع مـذ ، وا ، ج : بونړوُونکي (مؤ ، وا: بُونړوُونکې ) ] مچـان ، ماشـي یـا ډنبرې بنړوُونکے یا الوزوُونکے۔

**بُونړوه** :- (بُو + نړ + وَه ) [ پ(ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج : بُونړووې] لامبه (سو) و ـــــ بونړه۔

**بُونـړه** :- (بُـوْ + نـړه ) [ پ (ب ، خ ) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بـونړې ] پـه مـالوچو یـا پُنبې چې د بـوئیں تېـل اولګـولے شـي او بیـا دا پـه غـوږ کښـې د خوشبویۍ دپاره کښېښولے شي۔بُونړوه ، لامبه۔

**بونـړهٔ** :- (بـو + نړهٔ ) [ پ ، اس ، مـؤ] سپېږوونے ، بورنړهٔ ، هغـه اوچ اوړهٔ یـا دُوړه چې پېړې په کښې جوړولے شي۔

**ـــــ پرې نهٔ اچول** :- (اص) بې لحاظه ، سپین سپین وئیل۔

**بُونړهار** :- (بُو + نړ + ها + رْ) [ پ ، اس ، صو ، مذ] بنهار ، بنېدا ، د مچـو مچانو یا ډنبرو وغېره اواز۔

**بُونړے** :- (بو + نړے) اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ،وا ، ج : بونړي (مؤ وا: بونړۍ ) ] هغه څوک چې په پوزه کښې خبرې کوي ۔ګونړے ، خونړ خونړے۔(۲) د پوزې تېنکے یا تنکے ، د پوزې اډُوکے۔

**بُونړي** :- (بُ+ نړي ) [ پ ، (ب ،خ ) اس ، مؤ ، وا ، ج : بونړۍ ]د مال د خرڅـو اوله سودا ، د سودا سر ، شروع۔

**ـــــ خرابول** :- (اص ) سحر وختي دوکاندر نه قرض سوداد اخستل۔

**ـــــ کول** :- (ب ، خ ) اص ۔د سودا سر لګول ، د خرڅون د څیز اولـه سودا کول ، سودا شروع کول۔

**ـــــ کول** :- (ب ، خ ) اص ۔د مال د خرڅېدلو شروع کېدل ، د سودا سر لګېدل۔

**بُونېـډل** :- (بُـو + نړ + ې + د + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص لا] برنګېـدل ، پرې وي ، مونډے۔

بنګبېدل، بنېدل ، د مچانو ، مچو ، ډنبرو يا بل څيز بڼ بڼ اواز کېدل.

**بُونبېدلے** :-(بُـو+نِڼ +ېِ+دَ + لَـے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : بونبېدلي ، (مؤ ، وا ، بونبېدلې ) ] برنګبېدلې ، بنګبېدلي بنبېدلې ، د مچانو ، مچو ، ډنبرو يا داسې نورو څيزونو بڼ بڼ شوے.

**بُونبېدنه** :- (بُو + نَېِ + دَ + نه ) [ اف ، پ (قاموس) حمص ] بنګبېدنه بنبېدنه ، د مچو ، مچانو يا ډنبرو بڼ بڼ کونه.

**بُونبېدُونکي** :- (بُـو + نَېِ ْ + دُو + نْ + کَـے ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : بونبېدُونکي (مؤ ، وا: بونبېدُونکې ) ] بنبېدونکے ، زنګ زنګ کوُونکے ، بنګبېدوُنکے ، برنګبېدونکے.

**بونس** :- (بـو + نَ + سْ ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج :بونسونه ] هغه خاص انعام چې د تنخوا نه علاوه نوکرانو يا مزدورانو ته ورکولے شي.

**ـــــ ووچر** :- (اص ) د پاکستان د سټېټ بېنک هغه اجازت نامه چې د هغې په ذريعه د باهر ملک نه سامان راغوښتے شي . بونس ووچر د خپل ملک نه باهر په مال لېږلو حاصلېدے شي او بيا د هغه بونس ووچر په ذريعه د بل ملک نه تجارتي سامان راغوښتے شي.

**بونسټ** :- (بُـو + نْ + سَ + ټْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بونسټونه ] بېخ ، بُنياد ، وېخ ، جرړه ، کُونسټے (سو).

**بونګ** :- (بـو + نْ + ګْ ) [ پ (ب ، خ ) وز + بنـو) اس ، مؤ ، مذ ، وا ، ج : بونګونه ، بونګينه ] و ـــــ بانګ.

**بونګه** :- (بـو + نْ + ګَـه ) [ پ (ب ، خ ) اس ، مؤ ، وا ، ج : بـونګې ] هغه رقم چې د تښتولي بنيادم يا مال راخلاصولو دپاره شندلے شي . د مال مالک خپل مال د غلو نه بيا په قيمت اخلي . خو بونګه د اصل قيمت نه اکثر ډېره کمه وي.

**ـــــ اخستل** :- (اص ) د تښتولي بنيادم يا مال وغېره په عوض کښې پيسې اخستل او مال واپس خپل څښتن ته ورکول.

**ـــــ اوسېدل** :- (اص ) په يرغمال کښې اوسېدل.

**ـــــ شندل** :- (ب ، خ ) اص . د غلا د مال د راخلاصولو دپاره پيسې ورکول ، بونګه ورکول.

**ـــــ ورکول** :- (اص ) و ـــــ بونګه شندل.

**بونګے** :- (بـو + نْ + ګَـے ) [ اف ، پ (قاموس) اس ص ، مذ ، (مؤ ، وا ، بونګۍ ) ] مونجے ، بونجے ، پوزه پرېکړے ، هغه څوک چې پوزه ئې پرې وي.

**بُو نواس** :- (بُو + نُ + وا + سْ ) [ ع ، اس ، مذ ] ابو نواس د هارون الرشيد د دربار يو شاعر چې په بصره کښې پيدا شوے ؤ.

**بُونواله** :- (بُو + نْ + وا + له ) [ پ (ګن) اس ، مؤ ، مذ] و ـــ برېښنکۍ

**بُونه** :- (بُو +نه ) [ اف :پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بونې ج (۱) د سفر سامان، دا د بار سره وئيلے شي . لکه بار و بُونه ، (۲) د بولو ځاے ، کونه ، (۳) د باز د يرې د زرکانو يا بټېر پنېدنه ، (۴) زيات وهل ټکول.

**ـــــ کول** :- (اص ) زيات ډبول ، ډېر وهل ټکول.

**بونيا** :-(بو + نْ + يا ) [ اف : پ(قاموس) ص ] پېژندګلو ، بلد ، واقف

**بونياک** :-(بُو+نْ + يا + کْ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، (مؤ وا: بونياکه ، ج : بونياکې ) ] بدبويه ، ګنده ، خراب ، سخا ، بوئي ناک.

**بُونياکې ورستې خبرې کول** :- (اف ) اص . بوئيناکې خبرې کول ، غل غپارې وئيل ، بدې او کينه ناکې خبرې کول ، د عداوت له کبله بد ژغېدل

**بُـوواړے** :- (بُـو + وا + ړے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] بوهـارے ، بوارے ، جارو.

**بوهارے** :- (بو + ها + رے ) [ پ (ظفر) اس، مذ، وا، ج : بوهاري (مؤ وا: بوهارۍ ) ] و ـــــ بوارے.

**بوهره** :- (بو + هْ + رَه ) [ ه ، اس ، مذ] د اسماعيليه فرقې يو شاخ.

**بوهيميا** :- (بو + هې + مْ + يا) [اس ، مذ ] د چيکو سلواکيه نومې ملک د ټولو نه لويه صوبه.

**بوے** :- (بْ + وَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] د ژرندې يا ميچنې هغه لرګے چې پل پرې پورته کېږي.

**بُوئ** :- (بُو + ئ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بُويونه ] (۱) بوئيں . ورمه بُو. (۲) اثر ، نخښه.

په هغوي کښې چې څۀ بوئي د عاشقۍ وي
پـــه کښې نـــۀ وي بوئي د رسم او رواج (رحمان)

**ـــــ اخستل** :- (اص ) (۱) بد بويه کېدل ، سخا کېدل (۲) چوس وهل بوئي . وهل، د خوراک په طمع ګرځېدل (۳) د ښکاري سپي د ښکار په بوئي پسې روانېدل (۴) په چل ول څۀ راز معلومول.

**ـــــ اوچتېدل** :- (اص ) (۱) بوئي پورته کېدل ، بوئي خورېدل . (۲) څۀ خبره مشهورېدل ، بدنامي کېدل ،بوئي پرېښول.

**ـــــ پرکښل** :- (اف ) اص . (۱) د حېوان څۀ څيز بويول ، (۲) د وړ سترګې کس په باب کښې وئيلے شي.

**ـــــ پرېښول** :- (اص ) و ـــــ بوئي اوچتېدل.

**ـــــ تلل** :- (اص ) (۱) بدبوئي لور په لور خورېدل ، بوئي کول (۲) د څۀ خبرې مشهورې کېدل ، د څۀ واقعې په حقله د خلکو خبرېدل.

**ـــــ راتلل** :- (اص ) (۱) بدبوئي يا خوشبوئي خورېدل.

د خـــتن د مښکو نن شۀ راته سهل
چې ئې بوئي د زلفو راغے تر دماغ (حميد)

(۲) د څۀ پټ څيز راز ښکاره کېدل.

**ـــــ روانېدل** :- (اص ) (۱) بوئي شروع کېدل . (۲) بوئي خورېدل ، خبره مشهورېدل ، بدنامي جوړېدل.

**ـــــ کښل** :- (اف ) اص . (۱) د څۀ څيز بوئي کول (۲) وړ سترګي يا وړے خوئي کول ، بوئي اخستل ، بويول.

**ـــــ کول** :- (اص ) (۱) و ـــ بوئي تلل (۲) بويول.

**ـــــ لګېدل** :- (اص ) بوئي شروع کېدل ، بوئي پرېښول.

چـــې د عشق د نـــافــې بوئي پرې لګېدلے
درست صورت ئې سرتر پايه مشک ناب شۀ (خوشحال)

**ـــــ مښل** :- (اص ) بوئي په جامو يا ځان پورې لګول.

**ـــــ ولاړېدل** :-(اص ) (۱) بوئي خورېدل ، بدبوئي پيدا کېدل (۲) څۀ پټه خبره څرګندېدل. راز ښکاره کېدل (۳) خبره خرابېدل.

**په بوئي پسې تلل** :- (اص ) درک وهل ، پته لګته معلومول ، سراغ لګول ، د غل منډه يا پل اخستل ، شسکارل.

**بوئي کښ** :- (بوئي + ک + شْ يا کَ + خ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بوئي کښان (مؤ ، وا، بوئي کښه ، ج : بوئي کښې ) ] (۱) وړ سترګے سړے، اروا وړے ، هغه څوک چې سترګې ئې وړې وي. (۲) سُراغ رسان سپے

**بوئي ناک** :- (بوئي + ناک ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : ، (مؤ وا: بوئي ناکه ، ج : بوئي ناکې ) ] بوئي سخا، ګنده ، هغه څيز چې بوئي لري.

**بوئې** :- (بو + ئې ) [ پ (ب ، خ ) اس ، مذ ، مؤ ] بائې کړې ، بائللے،

بائلودے.

**بويا** :- (بو + يا) [اف : پ (قاموس) اس ،مؤ ، وا ، ج : بوياوې] يو خود رو يا ځنګلي بوټے.

**بويـاره** :- (بُـو + يـا + ره) [اف : پ (قـاموس) ص ، مـؤ] علامـه ، نخښـه نښانه ، لږ څهٔ پاتې شوے څيز.

**بوېريا** :- (بَ + وې + رْ + يا) [انګ ، اس معـر] د جرمنـي پـه ملک يـو رياست.

**بُوين** :-(بُـو + يَ +نْ) [پ ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : (مـؤ ، وا: بوينـه ، ج : بوينې)] و ـــــ بوئي ناک.

**بُويـول** :- (بـو + يَ + ؤ + ل) [پ ، مـص مـت] (۱) بـوئي کـول ، د څهٔ څيـز بوئي اخستل ، څهٔ څيـز پوزې تـه نزدې کـول (۲) سراغ لګول ، د څهٔ کار پته لګول ، لکه د چا خولهٔ بويول .

**خولـهٔ بويـول** :- (اص) د چـا مـافي الضـمير معلومـول ، د چـا د زړهٔ خبـره معلومول

**بويول** :-(بو +يَ + وُ+لْ) [پ، (ب، خ) مص مت] بائلل، بائېلودل، بېيول

**بُويولے** :- (بُو + يَ +وُ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : بويـولي (مؤ ، وا: بُويولې)] بوئے کړے شوے.

**بُويونه** :- (بُو + يَ + و + نه) [پ ، حمص] (۱) بوئي کونه ، څهٔ څيـز د بـوئي کولو دپاره پوزې ته نزدې کونه (۲) پته لګونه.

**بويونه** :- (بو + يَ + وُ + نَ) [پ (ب ، خ) حمص] بائېلودنه ، بېلونه بائلنه ، بائلل ، بائلودل.

**بويُوونکـے** :- (بُـو + يَ + وو + نْ + کَـے) [پ ، اس فـا ع ، مـذ ،وا ، ج : بويـوُونکي ، (مـؤ ، وا ، بويـوُونکې)] بـوئي کـوونکے ، بـوئي اخستونکے ، څهٔ څيز پورې ته نزدې کوونکے.

**بويوُونکے** :- (بَو + يَ + ووُ + نْ + کَے) [پ (ب ، خ) اس ، فا ع ، مذ وا ، ج : بويـوُونکي (مـؤ ، وا ، بويـوُونکې)] بـائلوُونکے ، بـائيلوُونکے ، بېيوُونکے.

**بُويه** :- (بُ + وَ ے + ه) [فا ،اس) د ايران او ترکستان د يو شاهي خاندان نوم

**بويه** :- (بو + يه) [پ ، فا : بايد ، اس ، مؤ] (۱) شايد ، بايد ، ګوندې، کندې (۲) په کار ده ، وي دې.

نېک له نېکو سره بويه بد له بدو

که څوک غواړي ولايت په دې دنيا (رحمان)

**بويه** :- (بو+ يه) [پ (وز) اس،معر، مؤ] په وزيرستان کښې د يو ځاے نوم

**بُويه** :- (بُو + يه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] يو قسم بـوټے دے چې پلي نيسي، سپين ګل ئې وي -وړے کوي او د خربوزو د بـاغ نـه چاپېر د شپول په ډول کرلے کېږي.

**بُويېدل** :- (بُو + ئي + دْ + لْ) [پ ، مص لا] بـوئي کېدل ، د څهٔ څيـز بـوئي پرېښول.

**بويېدل** :- (بو + ئي + دْ + لْ) [پ (ب ، خ) مص لا] بائللے کېدل ، بېيدل.

**بُويېـدلے** :- (بُـو + ئـي + دْ + لَـے) [اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج : بوئيدلي (مؤ ، وا ، ج بوئيدلې)] بـوئي کـړے شـوے .د څهٔ څيزنـه بوئي پورته شوے.

**بُويېــدنګ** :- (بُــو + ئــي + دْ + نْ + ګْ) [اف ، پ (قــاموس) حمــص] بوئېدنګ ، بوئي کېدنه ، بويېدهٔ ، بوئي پورته کېدنه.

**بويېدنه** :- (بو + ئي + دْ + نه) [پ ، (ب ، خ) حمص] بـائيللے کېدنـه بـائې کېدنه ، بېيدنه .

**بُويېدُونکے** :- (بُـو + ئـي + دُو + نْ + کَے) [اف : پ (قـاموس) مف ، وا ، ج : بويېدونکي (مؤ ، وا: بويېدونکې)] بوئي کېدونکے ، هغه څيز چې بوئي ئې پورته کېدونکے ، سخاکېدونکے.

**بُويېدهٔ** :- (بُو + ئي + دهٔ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ بويېدهٔ.

**به** :- (بَ + ه) [پ] د راتلونکي وخت او د شک من تېر وخت علامـه لکـه رابه شي ، تلے به وي.

**بِه** :- (بِ + ه) [فا ، ص] ښهٔ.

**بها** :- (بَ + ها) [فا ، اس ، مؤ] (۱) قيمت ، بيعه ، قدر ، بيه

دل ودين مې کړه په هغه تُرک فدا

لا ئـــي نـــهٔ حسابوي د ځان بها (رحمان)

معشوقه که د خپل سر په بها مومي

ورحمـــان وتـــــه وېريا ده بهانه ده

(۲) د ځينو نومونو برخه لکه بهاء الدين لعل بها وغېره.

**بهـائي**:- (بهـا + ئـي) [اُر ، اس ، مـذ] بـائي ، ورور ، عزيـز ، هـم عمـر ، د خطاب دپاره وئيلے شي.

**بهائي بند** :- (بها + ئي + بَ + نْ + دْ) [اُر ، ص ، مذ ، وا ، ج : بهائي بنـدان ] بائي بند ، ورور عزيز ، خپل ، خوبش ، رشته دار.

**بهائي بندي** :- (بها + ئي + بَ + نْ + دِيْ) [اُر ، اس ، مؤ] بائي بنـدي ورور ګيري ، ورورولي ، خپلولي ، پخه دوستي.

**بهائي جان** :- (بها + ئِي + جا + نْ) [اُر ، اس ، ص ، مذ] بـائي جـان ، ورور عزيز دپاره د مينې لفظ.

**بهادر** :- (بَ + ها + دَ + رْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بهادران ، بهـادرون ، ( مؤ ، وا : بهادره ، ج : بهادرې] (۱) بادر ، نر ، ځوانمرد ، تکړه ، نهٔ يرېدونکے ، جنګي ، زړهٔ ور (۲) د پښتنو د نوم يوه غټه برخه.

**بهادر خېل** :- (بَ + ها + دَ + رْ + خې + لْ) [پ ، اس ، معـر] د کوهـاټ پـه ضـلع کښـې د يـو کلـي نـوم -ددې سره پـه غرونـو کښـې د مـالګو درنګونه دي.

**بهادر شاه ظفر** :- (اس معـر -د مغلو د خاندان اخري بادشاه چې پـه کـال ۱۸۵۷ء کښې انګرېزانو د ازادۍ په جنګ کښـې ګرفتـار کـړو او پـه رنګون کښې ئې قبد کړو ، هم هلته په حق ورسېدو.

**بهادر کلِي** :- (بَ + ها + دَ + رْ + کَ + لَے) [پ ، اس ، معـر] د مومنـدو يـو مشهور کلے چې رحمان بابا په کښې پيدا شوے وهٔ.

**بهــادري** :- (بَ + هــا + دَ + رِيْ) [پ ،تـر ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بهــادرئ] نرتوب ، تکړه توب ، ځوانمردي ، ښهٔ ځوان توب.

**بهار** :- (بَ + ها + رْ) [فا ، اس ، مد ، وا ، ج : بهارونه] (۱) سپرلے ،

لکه ونه مستقيم په خپل مقام يم

کــه خزان رابانديې راشي که بهار (رحمان)

(۲) ځواني ، جوبن ، شباب.

د بهار له لاسه داغ لکه لاله يم

ولـــې نهٔ کا التفات خزان زما (کاظم خان)

**بهار**:- (بِ + ها + رْ) [ه ، اس ، مذ ج د هندوستان يوه صوبه.

**بهارت** :- (بها + رَ + تْ) [ه ، اس ، مذ ] هندوستان.

**بهارتي** :- (بها + رْ + تِيْ) [ه ، اس ، مذ ، مؤ] د هندوستان اوسېدونکے ، د بهارت سره تعلق لرونکے.

**بهـاري** :- (بَ + هـا + ري) [فـا ، اس ، ص] د بهـار سره تعلـق لـرونکے، د بهار وريځې اکثر شاعران په خپل کلام کښې استعمالوي.

بوالقاسم چې د باران په دود وربـرې

په زړګي باندې مې ابرې بهاري دے

**بهـــاري** :- (بِ + هـــا + رِيْ) [ه ، اس ، ص ، مـــذ ، وا ، ج : بهاريـــان] د هندوستان د بهار د صوبې اوسېدونکے.

**بُهارۍ** :- (بُ + ها + رۍ) [پ (گن) اس ، مؤ] ربېځ ، جا رو ، بهرے

**بهانـــد** :- (بَ + هـــا + نْ + دْ) [پ ، ص ، مـــذ ، (مـــؤ ، وا ، بهانـــده ، ج : بهاندې)] بهېدونکے ، بهنده ، روان ، جاري.

**بهاڼ** :- (ب + ها + ڼ) [پ ، اس ، مذ ،وا ،ج : بهاڼان (مؤ،وا: بهاڼه ، ج : بهاڼې)] بياڼ ، د اسپې بچے.

چې ئې مور او پلار تفچاق وي خدا ے دې نۀکا
چـــــې بهـــــاڼ ځنـــــې پيدا شي لکه خر (خوشحال)

**بهانه** :- (بَ + ها + نَه) [فا ، اس، مؤ، و، ج :بهانې] بانه، حيله، پلمه، عُذر

دردواه وکــــارم بــــهانه د تماکو کړم
سوے لوګړن مدام په نار يم ستا د مخ (رحمان)

شمع ځان تر مرګ پخوا ژاړي علمه
د فانـــوس پـــه بهانه ئې کفن راوړ (کاظم خان)

**بهاؤ** :- (بَ + ها + ؤ) [ه ، ص] بهېدنه ، جاري کېدنه ، د بهېدلو رُخ

**بهاؤ**:- (بها + ؤ) [ه ، اس ، مذ] بيعه ، نرخ ، قيمت

**بهـــاولپور** :- (بهـــا + وَ + لْ + پُـــو + رْ) [اس ، معـــر ، مـــذ] (۱) پـــه قبلئيـــز پاکستان کښې د پنجاب د صوبې يوه حصه (۲) د يو ښار نوم.

**بهبـــود** :- (ب + هْ + بُـــوْ + دْ) [فـــا ، اس ، مـــذ] (۱) ګټـــه ، نفـــع ، فائـــده (۲) بهتري ، ښۀ والے (۳) ترقي ، لوے والے.

**بهتـــر** :- (بَ + هْ + تَ + رْ) [ه ، اس ، عـــدد] (۱) دوه اويـــا ، (۲) پاګـــل ، لېونے ، ډېر بوډا ، زيات زوړ ، عمر خوړلے.

**ـــــ کېدل** :- (اص) لېونے کېدل ، د ډېر بوډاتوب له کبله د چا دماغ کار پرېښول ، بهترے کېدل.

**بهتـــر** :- (بِ + هْ + تَ + رْ) [فـــا ، ص ، مـــذ (مـــؤ ، وا: بهتـــره ، ج : بهتـــرې)] زيات ښۀ ، غوره.

ځلورم په منع منع شه بهتر
که دا منع وي په شرع برابر (عبدالسلام)
کوڼ بهتر دے چې ځۀ نۀ اوري په غوږ
نـــــۀ چې غوږ کاندي په بد وئيل شنوا (رحمان)

**بهتري** :- (بِ + هْ + تَ + رِيْ) [فا ، ص ، مؤ ، وا ، ج : بهتـــرئ] خېر ، ښۀ والے ، فائده ، ګټه.

هېڅ ګمان د بهترۍ وربانديې مه کړه
کهتـــــري ده وار پـــــه وار د دې دنيا (رحمان)
ځان په در د ترکو خاوري کړه جنابه
کهتـــــري ده د دلبـــــــرو بـــــهتري

**بهترين** :- (ب +هْ +تَ + رِيْ + نْ) [فا،ص ، مذ ،وا،ج : (مؤ ، وا: بهترينه ، ج : بهترينې)] ډېر غوره ، په ټولو کښې ښۀ ، ډېر ښۀ

**بهټو** :- (بَهـ + ټُو) [سن ، اس ، مذ] د سندهـ يو مشهور خاندان.

**بهجـــن** :- (بَهـــ + جَ + نْ) [ه ، اس ، مـــذ ، وا ، ج : بهجنونـــه] د هنـــدوانو مذهبي ګيت يا سندره يا صوتونه ، دعاګانې ، مناجات.

**بهر** :- (بَ +هَ + رْ) [پ ، ه : باهر ، اس ، ظرف ، مذ] (۱) ورچنې ، بـــاهر ، دننه ضد ، (۲) لوے اودس ماتے.

**ـــــ ايستل** :- (اص) (۱) ورچنـــې ايســـتل ، بـــاهر کـــول ، (۲) د کـــار نـــه فارغول يا ويستل.

**ـــــ کول** :- (اص) (۱) بهر ته ويستل ، ورچنې ويستل (۲) د ځۀ کـــار يـــا نوکرۍ نه فارغول يا شړل (۳) اودس ماتول.

**ـــــ کېدل** :- (اص) (۱) بهر تـــه راوتـــل ـ ورچنې کېـــدل (۲) د ځۀ کـــار يـــا نوکرۍ نه فارغېدل ، يا شړلے کېدل.

**ـــــ وتل** :- (اص) ورچنې وتل ، باهر تلل.

**بهر ته تلل**:- (اص) (۱) ورچنې وتل ، د کـــوره بـــاهر کېـــدل (۲) اودس مـــاتي دپاره لُوګې ته وتل ، صحرا ته تلل.

**بهـــر تـــه راوتـــل** :- (اص) (۱) ورچنـــې راوتـــل ، (۲) شـــرمنده کېـــدل ـ (۳) ښکاره کېدل ، ځرګندېدل.

**بهرام** :- (بَ + هْ + را + مْ) [فا ، اس ، معـــر ، مـــذ] (۱) لُغ : د پـنځم اسمان يـو ستـورے ، مـريخ (۲) د يـو بادشاه نوم چې بهـرام شـهزاده بانـدې مشهـور دے او په ګـل اندامـه نومې جينۍ مئين ؤ ـ (۳) د خـوشحال خان خټک د زوے نوم (۴) يو عام نوم.

**بهـرت** :- (بَهـ + رَ + تْ) [س ،اس ، معـر ، مـذ] (۱) د رامچنـدر ورور او د راجه د سرتهـ زوے (۲) په بنوں ضلع کښې د يو کلي نوم.

**بهـروپ** :- (بَ + هـ + رُو + پْ) [س ، ص ، مـذ] د ټوقـو ټقـالو او خنـدولو دپاره قسم قسم جامې بدلول ، نخرې کول.

**بهروپيا** :- (بَ + هْ + رُوْ + پْ + يا) [ه ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : بهروپيـان] (۱) ټوقمار ، نقلي ، (۲) ټګ ، مکار ، دوکه باز

**بهروسه** :- (بَهـ + رو + سه) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بهروسې] بروسـه بـاور ، اتبار ، يقين ، اُمېد ، اسره.

**بهـــرول** :- (بَ + هْ + رَ + وَ + لْ) [پ ، مـــص ، مـــتا] بهـــر کـــول ، ورچنـــې ويستل.

**بهرونه** :- (بَ + هْ + رَ + وْ + نَه) [پ ، حمص] بهر کونه ، باهر ته ويسـتنه ، ورچنې اوباسنه

**بهـــر وُونکـــے** :- (بَ + هْ + رَ + وُوْ + نْ + کَـــے) [پ ، اس ، فـــاع ، مـــذ ، وا ، ج : بهروُونکي] باهر ته ايستونکے ، بهر ويستونکے ، ورچنې اوباسونکے.

**بهـــره**:- (بَ + هْ + رَه) [فـــا ، اس ، مـــؤ ، وا ، ج : بهـــرې] حصـــه، برخـــه ، نصيب ، قسمت ،

د ضحٰی په قربانۍ کښې بهره ورکړه (عبدالسلام)
هرګز نـــۀ لري بـــهره له دست وپايه
د سمک عالم به رنګ د حنا ځۀ کا (کاظم خان)

**بهره مند** :- (بهره + مَ + نْ + دْ) [فا ،اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : بهره منـدان (مؤ ، وا: بهره منده ، ج : بهره مندې)] بهره ور ، بهره يـاب ، خـوش قسمت ، د ښۀ نصيب خاوند ، ګټه اوچتوُونکے.

**بهره ور** :- (بَهره + وَ + ر) [فـا ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج ، (مـؤ ، وا: بهـره وره ، ج : بهره ورې)] و ـــــ بهره مند

**بهره ياب** :- (بهره + يا + بْ) [فـا ، اس ، ص، مـذ، وا، ج (مـؤ ، وا، بهـره يابه ، ج : بهره يابې)] و ـــــ بهره مند.

**بهرے** :-(بَ + هْ +رَے) [اف : پ (قاموس) اس،مذ ،وا ،ج : بهري] بُهارۍ ، ربېځ ، جارو

**بهشـــتي** :- (بِ + ه + شْ + تِـــيْ) [فـــا ، اس ، ص] (۱) جنتـــي ، خـــدا ے بخنبلے (۲) اوبه ورے ، سقه ، ماشکي.

**بهشتي زېور** :- (اس ، معر) د زنانؤ دپاره د مسئلو يـو کتـاب چې مولانا اشرف علي تهانوي ليکلے دے.

**بهګوان** :- (بَهـ + ګْ + وا + نْ) [س ،اس مذ] خدا ے ، اللہ.

**بهګوت ګيتا** :- (بَهـ + ګْ + وَ + تْ + ګيْ + تـا) [س ، اس ، معر ، مؤ] لُغ : د خدا ے سندره ، بهګود ګيتـا ـ د هندوانو د مشـهور کتـاب مهـا

بهارت یو نظم چې کرشن مهاراج پورې تـه منسوب دے درې حصې لري او په هره حصه کښې شپږ بابونه دي چې هغوي ته اُپشد وائي۔

**بهله** :- (بْ + هْ + له) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هښـمه ، د سپرلي توره ګوره وریځ۔

**بهمبور**:- (بَهـ + مْ + بُو +رْ) [س ، اس ، معر مذ] په سندهـ کښې د کراچۍ سره نزدې د یو زوړ ښار نخښې نښانې۔

**بهنـد** :- (بَ + هْ + نْ + دْ) [پ ،اس،مـذ (مـؤ ، وا: بهنـده ، ج: بهنـدې)] بهاند ، بهېدُونکے ، جاري۔

**بهنه** :- (بَ + هْ + نه) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بهنې] (۱) د ماشومانو د تندي هغه وېښتهٔ چې د منښتې په ډول ساتلي شوي وي ۔(۲) د چابک یا د کروړې د تسمې څُنډے۔

**بهوپال** :- (بُهو + پا + لْ) [اس ، معر ، مذ] پـه هندوستان کښې د پښتنو یو پخوانے ریاست۔

**بهوپالے** :- (بُهو + پا + لَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بهوپالیـان] د بهوپال اوسېدونکے ، د بهوپال سره تعلق لرونکے۔

**بهوټـان** :- (بُهـوْ + ټا + نْ) [اس ، معر ، مـذ] د نمر ختیځ پاکسـتان او اسام نه قطب طرف ته پروت یو ملک۔

**بهوټــانے** :- (بُهــوْ + ټــا + نَــے) [ب ، اس ، مــذ ، وا ، ج : بهوټانیــان] د بهوټاناوسېدونکے ، د بهوټان سره تعلق لرونکے۔

**بهول** :- (بَ + هَ + وَ +لْ) [پ،مص مت] بیول ، جاري کول ، روانول

**بهولـے** :- (بَ + هَ + وْ + لَـے) [پ ، مـف ، مـذ ،وا ،ج : بهـولي ، (مـؤ ، وا: بهولې ، ) ] بیولے ، جاري کړے۔

**بهونګ** :- (بَ + هَ + وَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ بهونه

**بهونه**:- (بَ + هَ + وْ + نَه) [پ ، حمص ] بیونه ، جاري کونه

**بهوُونکے** :- (بَ+هَ +وُوْ+نْ +کَے) [پ ،اس،فـاع ، مذ ،وا ، ج : بهـیوُونکي ( مؤ : بهوونکې ] بیوُونکے ، جاري کوُونکے ، روانوُونکے۔

**بهه** :- (بَ + هَه) [پ (ظفر) اس ، مؤ] ګنګځر ، کنګرخلي ، تازه وړې

**بِهي** :- (بِ + هيْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بهـي ګـان] یـوه مشمهوره مېوه ، بهۍ

**بهۍ** :- (بَ + هَ + یَی) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] (۱) اوۍ ، د کوهي د اوبو لاندې مزکه ، کوپه (۲) سو : والـه ، هغـه ولـه چې مسـتقلې اوبـهٔ پکښې بهېږي

**بهیانه** :- (بِ + هْ + یا + نَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] قیمتې۔

ـــــ **کېدل** :- (اف) اص۔قیمتي کېدل۔

**بهیدانه** :- (بِ + هيْ + دا + نَه) [اس ، مؤ] بیدانه ، د بهۍ تخم ،

**بهېــدل** :- (بَ + هَــې + دْ + لْ) [پ، مــص لا] بیېـدل ، جـاري کېـدل ، روانېدل۔

**بهېدلے** :- (بَ + هې + دْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : بهېدلي ] بیېدلے ، جاري شوے ، روان شوے۔

**بهېدنګ** :- (بَ + هَې + دَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس )] و ـ بهېدنه۔

**بهېدنـه**:- (بَ + هَـې + دْ + نَـه) [پ ، حمـص] بیېـدن ، جـاري کېدنـه ، روانېدنه۔

**بهېـدُونکے** :- (بَ + هـې+دُوْ +نْ +کَـے) [پ ،مف،مـذ ،و ،ج : بهېـدُونکي ] بیېدونکے ، جاري کېدونکے ، روانېدونکے ، بهېدونے۔

**بهېدُونے** :- (بَ + هې + دُوْ + نَے) [پ ، مف ، مذ ،وا ، ج : بهېـدُوني] و ـ بهېدُونکے۔

**بهیر** :- (بَ + هِيْ + رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بهیرُونه ، بهیرینه ] قطار ، قافله ، ټولے۔

**بَے** :- (بَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] بَیه ، بیعه ، قیمت ، بها۔

**بې** :- (بيْ) [پ، اس ، مـذ ] (۱) بَئـی ، د ماشـومانو پـه ژبـه خوړېـدو تـه وائي۔

(۲) د پکلۍ او اوګۍ په علاقه کښې د هُم یا هن دپاره استعمالېږي ۔ لکه : "هغه بې راغلے دے" ما بې داکار کړے دے"۔

ـــــ **کول** :- (اص) خوړول۔

ـــــ **کېدل** :- (اص) خوړېدل۔

**بې** :- (بې) [پ،حرف] (۱)د الف بې د پټۍ د دویم ټکي اواز(۲) بغې، سپوا

مخ بې مینې که څوک ستائي ستایــهٔ نهٔ شي

د مـــــدوح د قـــدره چـــازده بې مداحه (رحمان)

(۳) سابقه

ـــــ **اب** :- (اص) (۱) بې عزته ، بې ابرو ، بې وقره

لکه څوک چې په خرهٔ سور وي مخ ئې تور وي

زهٔ هـم هسې پـــــه څښتن پـــورې بې اب یم

(رحمان)

(۲) وینځلے ، سپور (۳) بې اوبو ،

ګــرم نان لکه افتاب مه وړده بې ابه

چې سینه دې د مېلمه نهٔ شي کبابه (کاظم خان)

ـــــ **آبي** :- (اس) بې عزتي ، بې حرمتي ، بې حیائي ، سپکتوب

ـــــ **ابرې** :- (اف) اص۔بې بوده مزکه ، هغه مزکه چې حاصل ترې نهٔ وي۔

ـــــ **اتباره** :- (اص) بې اعتباره ،چې اتبار پرې نهٔ شي کېدے ، کوټه ، ټګ ، کلپ۔بې اعتماده ، بې ایسو ، بې ویسا۔

ـــــ **اتباري** :- (اس) بې اعتباري ، کوټه توب ، ټګي۔

ـــــ **اتفاق یا بې اتفاقه** :- (اص) په خپلو کښې وران ، ځان ځان تـه ، جدا جدا ، ببل ببل ، په ببله ببله لار روان ۔

ـــــ **اتفاقي** :- (اس) ځان ځاني، چې رائې ئې یوه نهٔ وي ۔په خپلو کښې ورانے۔

ـــــ **اثره** :- (ص) چې اثر نهٔ لري۔بې تاثیره ، بې فائدې۔

هېڅ اثر د رحمان اوښکې په یار نهٔ کا

خدا ے دې اوښکې د چا نهٔ کا بې اثره

ـــــ **اثري** :- (اس) چې اثر نهٔ لري۔چې پاڼهٔ ئې نهٔ وي۔

ـــــ **اجل یا بې اجله** :- (ص) بې نېټې ، بې وخته ، بې اجل ، چې قضائې نهٔ وي

ستا په سرګو کښې ناتار سیاه کجل کا

بـــې اجـــله دم پـــــه دم کار د اجل کا (کاظم خان)

ـــــ **احتیاطه** :- هغه څوک چې احتیاط نهٔ کوي ۔بې پروا ، بې غمه ، بې بندوبسه۔

ـــــ **احتیاطي** :- (اس) بچاؤ نهٔ کونه ، بې بندوبسي ، بې پروائي ، بې غمي ، بې فکري۔

ـــــ **اختیار یـا بې اختیـاره** :- (ص) (۱) بې وسه ، بې قـابو ، بې واکـه ، مجبور (۲) ډېر زیات ، کافي ، د حد نه زیات۔

کـړې وروځې کـج باڼهٔ کارهٔ خویونه

بې اختیاره کاندې عقل د هوښیار کج (علیخان)

ـــــ **اختیاري** :- (اس) بې وسي ، بې واکي ، مجبوري۔

ـــــ **اخلاص یا بې اخلاصه** :- (ص) چې اخلاص نهٔ لـري ۔بې ښې توښې ، بې مینې بې مروته۔

بــــې اخــلاصه اقربــاء واړه پــردي دي
که دې پلر شي چې دښمن شي مه ئې وينه (عليخان)

ــــ **ادب يا بې ادبه** :- (ص) گُستاخ ، چې ادب نۀ کوي۔وران ، شوخ ، بې سړيتوبه ، بې خويه۔

چې ښځېتن گېي خاضر بد کړي حميده
نشته تا غــونډې بــې شرمه بې ادب
چــــې بــــوسه لــه ياره غواړې بې ادبه
خدائې دې نه کاندي رحمان دا هسې شوخ

ــــ **ادبي** :- (اس) گُستاخي ، شوخي ، بې سړيتوبي ، بې خوئي۔

بې ادبي زمانه وشوه
په بې امرۍ مې د يار مخ ته وکتنه (ټپه)

ــــ **اَرزه** :- (ص) بې عزته ، درمانده۔

ــــ **کول** :- (اص) بې عزته کول۔

ــــ **کېدل** :- بې عزته کېدل۔

ــــ **ارزي** :- (اس) موتازي ، بې قدري ، بې خوندي۔

ــــ **ارزي کول** :- (اص) سپکاوي کول ، بې عزتي کول ، احترام نۀ کول

**د بې ارزۍ په سترگه ورته کتل**:- (اص) په بد نظر ورته کتل ، چا تـه سپک کتل ، څوک په څۀ کښې نۀ شمارل۔

**د بې ارزۍ ژوند** :- (اص) د موتازۍ ژوند ، بې خونده عمر ، د ناکام شپې ورځې۔

**عُمر يا وخت په بې ارزۍ تېرول** :- (اص) بې خونده عمر تېرول ، سپکې شپې ورځې اړول ، د ناکام گذران کول۔

ــــ **اسباب يا بې اسبابه**:-(ص) بې سامانه بې ذريعې ، بې بندوبسته۔

د صورت په قوت څۀ شي بې اسبابه
په شبنم کښې که نهنگ شناوري کا (کاظم خان)

ــــ **اُستاده** :- (ص) چې استاد ئې نۀ وي۔هغه څوک چې په خپله مخه روان وي چې ماهر نۀ وي۔

ــــ **اسرې** :- (ص) چې اسره ئې نۀ وي ، بې وسيلې۔

هــغه تل په غم کښې ډوب وي عليخانه
هر چې تا غونډې کمزورې بې اسرې وي

ــــ **اصله** :- (ص) (۱) غلط ، بې حقيقته ، کم اصل ، بې ذاتـه ، بې نسبه (۲) بې خُويه ، بې عادته۔

ــــ **اُصول يا بې اُصوله**:-(ص) چې اُصول ئې نۀ وي۔په خپله مخه کار کوُونکے۔

ــــ **اُصولي** :- (اس) بې قاعدگي ، بې لارې۔

ــــ **اعتداله**:-(اس) بې توله ،چې اعتدال په کښې نۀ وي۔بې اندازې

ــــ **اعتدالي** :-(اس) چې اندازې سره سم نۀ وي۔بد پرهېزي۔

ــــ **اعتقاده**:-(ص) بې عقيدې ، چې عقيده ئې برابره نۀ وي۔بې يقينه ، بې لارې۔

ــــ **اعتقادي**:-(اس) بې يقيني ، بې لارې ، د عقيدې خرابي۔

ــــ **اعتماده**:-(ص) بې باوره ، چې باور پرې نۀ شي کېدے ، بې تولـه ، بې ژبې ، تگ ، بې اتباره۔

آه زما برگشته بخته
بې وفــا بې اعتماده (حميد)

ــــ **اعتمادي**:-(اس) بې باوري ، بې اتباري ، بې قولي۔

ــــ **افسره**:-(ص) (۱) چې افسر يا عهده دار ورسره نۀ وي۔چې مشر ئې نۀ وي (۲) بې تاجه۔

ــــ **افسونه**:-(ص) بې دمه ، بې اُودې ، بې اجازې۔

چــې لرې لـکه شانه هزار چوبونه
بې افسونه بـه نيول د تور منگور کا (کاظم خان)

ــــ **انتها** :-(ص) بې حده ، ډېر زيات ، بې حسابه۔

ــــ **اندازه**:-(ص) بې اندازې ، بې خرته ، بې حسابه ، د حد نه زيات

ــــ **اندازې**:-(ص) و ــــ بې اندازه۔

ــــ **اندوه**:-(ص) (۱) بې غمه ، بې فکره ، بې انديښنې (۲) بې خطرې ، بې يرې

لـه گناهه وطاعت وته روان شه
دغه لار ده بې اندوهه بې خطره (مرزاخان انصاري)

ــــ **انديښنې**:-(ص) (۱) بې خطرې ، بې غمه ، بې فکره ، بې اندوه (۲) بې د څۀ يرې نه۔

ــــ **انسانيته**:-(ص) بې سړيتوبه ، بې خويه ، بې ادبه۔

ــــ **انصافه**:-(ص) چې انصاف په کښې نۀ وي۔ظالم ، بې عدله

بې انصافه زمانې د گل په پاڼې
خــرنگ وورول کاڼي په ورشو (حميد)

ــــ **انصافي**:-(اس) بې عدلي ، ظلم ، زياتي۔

چې لـه نورو د انصاف اُميد لرينه
په مذهب د ما دا هم بې انصافي ده (عبدالقادر خان)

ــــ **اولاده**:-(ص) چې اولاد ئې نۀ وي ، لوگ ، ميرات۔

ــــ **اولسه**:-(ص) بې قامه ، بې متو ، بې پرگې۔

ــــ **ايسو**:-(ب ، خ) اص۔بې اتباره ، تگ ، بې ويسا۔

ــــ **ايمان يـا بـې ايمانـه**:-(ص) (۱) چې ايمـان پـه کښې نـۀ وي ۔بيمـان (۲) بيمانه ، ډارن ، يرندُوکے (۳) دروغژن (۴) تگ ، دوکه باز۔

ــــ **ايمانتوب**:-(اس) و ــــ بې ايماني۔

ــــ **ايمانتيا**:-(اس) و ــــ بې ايماني۔

ــــ **ايماني**:-(اس) بې ماني ، بې ايمانتيا ، بې ايمانتوب۔

ــــ **باره**:-(ص) (۱) شا تورے ، چې بار پرې نۀ وي (۲) بې بره بې برکتـه ، بې مېوې۔

سنگدلي و چې بې ياره سروه نۀ کا
څــۀ خــور حم په فرياد د گرفتار کا (کاظم خان)

ــــ **باق يا بې باقه**:-(ص) حساب کتاب صفا شوے ، حساب پرې کړے ، پور پرې کړے شوے۔

ــــ **باقي**:-(اس) د حساب کتاب صفائي يا خلاصونه ، پور پرې کونه۔

ــــ **بـاک يـا بـې باکـه**:-(ص) (۱) بـې ادب ، مشـروټ (۲) بـادر ، بـې يـرې (۳) ټوقمـار (۴) اواره ، لُوچـه ، بـدعمل (۵) ازاد ، چې څۀ ئې خولۀ راځي هغه وائي۔ (۲) بېديا خوښې۔

ــــ **بـاکي**:-(۱) بـې ادبـي ، مشـروټي (۲) بـادري ، بـې يـرې تـوب (۳) ټوقماري (۴) اواره توب ، لوچه توب ، بدعملي (۵) ازادي۔

ــــ **بته**:-(ص) چې بت په کښې نۀ وي ، بې مائې۔

ــــ **بدل**:-(ص) قيمتي ، چې ثاني نۀ لري۔

ــــ **بدو**:-(ص) چې بدې نۀ لري ، بې ضرره۔

ــــ **برخې**:-(ص) (۱) بې حصې ، (۲) بد قسمته۔

ــــ **برخې کول**:-(اص) حصه نۀ ورکول ، د حصې نه محروم کول۔

ــــ **برخې کېدل**:-(اص) د حصې نه محروم کېدل ، حصه نۀ ورکېدل۔

ــــ **برکته**:-(ص) چې برکت نۀ لري۔چې برکت په کښې نۀ وي۔بې اثره ، بې ښې توښې۔

ستا په شان به شي جناب بې برکته
کــه د مینې هنر نه کاندې واعـــظه

—— **برکتي**:-(اس) چې برکت په کښې نۀ وي - بې خوندي -
—— **برګه**:-(ص) (۱) بې پاڼو ، لغړ
زۀ د یار غمونو هسې هډو پوست کړم
لـــکه ونه په خزان کښې شي بې برګه (حمید)
(۲) بې سامانه ، بې وسلې ، بې توښې ، بې بندوبسته
—— **بره**:-(ص) بې مېوې ، بې ثمره -
زۀ خو ستا له سروې قده برخوردار شوم
کـــه هــــر څـــو ســـرو بللے شي بې بره (حمید)
—— **بس**:-(ص) بې وسه ، کمزورے ، ناتوانه -
—— **بستر یا بې بستره**:-(ص) بې بسترې ، بې اسبابه ، خوار
—— **بصر یا بې بصره**:-(ص) بې سترګو ، ړوند ، چې نظر ئې نۀ لګي
پـه نـظر د بې بصر
لکه شام هسې سحر (رحمان)
—— **بصري**:-(اس) ړوند والے -
—— **بقا**:-(ص) فاني ، نۀ پاتې کېدُونکے -
دا دنیا ده بې وفا
بې وفا ده بې بقا (رحمان)
—— **بندوبسته**:-(ص) (۱) بې سامان، بې ذریعې، بې اسباب (۲) خور وور -
پرېشانې شوې د تا مشکینې زلفې
کـه عالم شو د خُتن بې بندوبسته
—— **بنیاد یا بې بنیاده**:-(ص) (۱) چې ویخ ئې کمزورے وي - (۲) دروغ ، بې اصله -
که هزار هزار پشتې تۀ ورته کېږدې
بـــې بنـیاده دے دیوار د دې دنیا (رحمان)
—— **بها**:-(ص) قیمتي ، نایاب ، غوره -
—— **بهره**:-(ص) بې برخې ، بې قسمته ، بې نصیبه -
—— **بُوده**:-(ص) بې فائدې ، عبث ، خوشے -
—— **بېخه**:-(ص) بې بنیاده ، چې بېخ نۀ لري ، کچه -
مــا ګڼــله به د دهر څـــۀ بنیاد دے
اوس معلومه شوه بې بېخه بې بنیاد دے (قاسم علي افریدي)
—— **پاله**:-(ص) بد پرهېزه، چې پال پرهېز نۀکوي -
—— **پالي**:-(اس) بد پرهېزي -
—— **پامتوب**:-(اس) بې پامتیا ، بې پامي ، بې فکري ، بې غوري ، بې پروائي -
—— **پامتیا**:-(اس) و —— بې پامتوب -
—— **پامه**:-(ص) بې فکره ، بې غوره -
—— **پامي**:-(اس) و —— بې پامتوب -
—— **پاڼو**:-(ص) و —— بې برګه - متل : '' بې پاڼو تېږېر دے په ترنګړ کښې هسې رغړي -
—— **پایان یا بې پایانه**:-(ص) بې حده ، بې حسابه ، بې بریده ، ډېر زیات ، بې اندازې ، وافر
حد پایان ئې هېڅ سړې موندلے نۀ دے
معـرفت ئې هسې بحرو بې پایان دے (رحمان)
—— **پایه**:-(ص) (۱) بې حسابه ، بې اندازې (۲) هغه څوک چې قـام قبیله ئې معلومه نۀ وي - (۳) بې وفا (۴) کچه ، بې ثبات

—— **پته**:-(ص) بې لوظه، بې قوله، بې وعدې، چې پت نۀ شي پوره کولے -
دا ستې چې پـه اور سوځي مراد ئې دا وي
نـــۀ پـــه اور کښې ســوے ښۀ یم نۀ بې پته (رحمان)
—— **پتي**:-(اس) بې ننګي ، بې لوظي ، بې قولي ، وعده خلافي
—— **پتے**:-(ص) چې پته ئې نۀ وي - بې درکه ، ورک
—— **پرتوګه**:- لُغ - چې پرتوګ ئې نۀ وي اغوستے - لغړ ، بربنډ ، اص : بې حیا ، بې شرم ، بې لارې ، بې نوه -
—— **پرته**:-(ص) بې باکه ، بې شرم ، ازاد -
—— **پرته کېدل**:-(اص) بې باکه کېدل -
—— **پرته وئیل**:-(اص) بکواس کول - بې فائدې ږغېدل، خوشې وېنا کول
—— **پرتې**:-(ص) ډېر خور ، خېټو ، ګېډور -
—— **پرتي**:-(اس) بې باکي ، بې شرمي ، ډېره ږغېدا -
—— **پرتي خوړل**:-(اص) زیات خوړل ، ډېر خوړل -
**په بې پرتي خوړل**:- (اص) په بې شرمۍ خوړل -
—— **پرسانه**:-(ص) (۱) بې تپوسه ، بې پوښتنې ، (۲) ړنده بادشاهي ، هغه ځاے چې د انصاف طمع ترې نۀ شي کېدے -
—— **پرګې**:-(ص) بې خېله ، بې بال بچه ، بې اولاده -
—— **پروا**:-(ص) (۱) بې غوره ، بې فکره ، بې غمه ، غافل (۲) مغرور ، خود سره -
—— **پروائـي**:-(اس) (۱بـې غـوري، بـې فکـري، بـې غمـي، غفلت (۲) مغروري ، خود سري -
—— **پر و بال**:-(ص) (۱) بې بڼو، بې پخو (۲) په بد حال، لاچار، مجبور -
تـــر کـــوڅه تېر شه د یار شماله
قـــصه بیــــان کړه زمــا له حاله
که درته وایي اوس حال ئې څۀ دے
وایـــه بلبـــل دے بـــې پـروباله (پیر محمد کاکړ)
—— **پره**:-(ص) (۱) بې وزرو ، (۲) هغه څوک چې وزر خو نۀ لري ولې رفتار ئې ډېر تېز وي - متل : '' بنده بې پره مارغۀ دے - ''
—— **پرې**:-(ص) بې ملګري ، یواځې ، ځان ته -
—— **پرې جنبې**:-(اص) بې تولي ، بې ملګرتیا ، یواځې ، ځان ته -
—— **پردتوب**:-(ص) و —— بې پردګي -
—— **پردتیا**:-(ص) و —— بې پردګي -
—— **پردګي**:-(ص) (۱) بې پردتوب ، بې پردتیا ، ښکاره مخ ، بې برقعې (۲) شرمندګي ، بې عزتي -
—— **پردې**:-(ص) (۱) د پردې نه بهر ، بې برقعې ، څرګند مـخ ، ښکاره (۲) شرمېدلے ، بې عزته (۳) چې راز ئې ښکاره شوے وي -
—— **پردې کول**:-(اص) (۱) بربنډول ، رمنډول (۲) شرمول ، بې عزته کول ، بې آبه کول (۳) د چا راز ښکاره کول -
—— **پردې کېدل**:-(اص) (۱) بربنډېدل ، رمنډېدل (۲) شرمېدل ، بې عزته کېدل، بې آبه کېدل (۳) د چا راز ښکاره کېدل -
—— **پلاره**:-(ص) (۱) چې پـلار ئـې نـۀ وي - یتـیم (۲) حرامـي ، مټـونګے (۳) په خپل سر -
—— **پیره**:-(ص) (۱) بې مُرشده ، هغه څوک چې پیر ئې نۀ وي (۲) بد مذهبه ، بې عقیدې ، بې لارې (۳) بې رحمه ، خود غرضه ، (۴) بد ذاته ، شیطان ، وران ، کم اصله - متـل :- '' بې پیره سره بد مذهبه جوړېږي '' -
—— **پیسې**:-(ص) (۱) چې پیسې ورسره نۀ وي - خوار ، غریب (۲) مفت ،

لیه ، هسې (۳) سپېرهٔ ، د پُولې پرق نه ناست.

ـــــ **تا**:-(ص) بغېر د تانه ، چې تهٔ نهٔ وي ، يوائې.

ـــــ **تاب یا بې تابه**:-(ص) (۱) بې طاقته ، کمزورے ، ناتوانه (۲) بې قـراره ، بې ارامه

زهٔ د یـــار پـه درد وغم کښې غرقاب خوښ یم
په دا اور کښې بې طاقت او بې تاب خوښ یم (رحمان)

ـــــ **تابي**:-(اس) بې قراري ، بې ارامي ، ترهه.

ستا د مخ پسې ئې هسې بې تابـي وه
چـې پـــېدا د ائینې په خاطر زنګ ؤ (کاظم خان)

ـــــ **تاثیره**:-(ص) و ـــــ بې اثره.

ـــــ **تال**:-(صوابي) ص.بې توله.

ـــــ **تاوانه**:-(ص) بې نقصانه.چې تاوان نهٔ لري.بې زیانه.

ـــــ **تدبیره**:-(ص) چې د خبرې تدبیر یا تابیا ئې نهٔ وي زده.

ـــــ **ترتیبه**:-(ص) ګډ وډ ، خور وور ، پرېشانه ، بې انتظامه

ـــــ **ترتیبي**:-(اس) ګډ وډتیا ، بې انتظامي ، پرېشاني.

ـــــ **ترسه**:-(ص) ظالم ، سخت زړے ، بې رحمه ، ناترسه.

ـــــ **ترکیب یا ترکیبه**:-(ص) بې طریقې.

ـــــ **تقصیره**:-(ص) بې قصوره،بې ګناه،چې غلطي ئې نهٔ وي ، بې خطا

ـــــ **تکلّف یا بې تکلّفه**:-(ص) (۱) ازاد (۲) د راز ملګرے.

ـــــ **تکلفي**:-(اس) آزادي.

ـــــ **تکلیفه**:-(ص) اسان ، سوکه ، چې تکلیف په کښې نهٔ وي.

ـــــ **تُکه**:-(ص) بې مناسبه ، بې طریقې ، فضول ، خوشې.

ـــــ **تمیزه**:-(ص) بې ادبه ، بې لحاظه،جاهل،بدتمیزه ، متـل:-"بلخَ بـې تمیزه ! لالې راغلې بې قمیصه"

ـــــ **تمیزي**:-(اس) بدتمیزي ، بې ادبي ، بې لحاظي ، جهالت

ـــــ **تنه**:-(ص) بې وجوده ، بې بدنه.

ـــــ **تُـوري**:-(ص) (۱) چـې تُـوره ورسـره نـهٔ وي -خـالي لاس ، تـش لاس (۲) برنډُوکے ، ډارن.

ـــــ **توښې**:-(ص) (۱) بـې زیرمـې ، تـش لاس ، بـې اسبابه ، بـې ګنـډې (۲) بې ښې ،بېکاره.

ـــــ **توله**:-(ص) (۱) چې په تـول یـا وزن نـهٔ وي (۲) ګـډ وډ ، بـې اتبـاره بـې وعدې (۳) فضول ، خوشې ټارے ، هغه څوک چې خولـهٔ ئـې پـه واک کښې نهٔ وي.

ـــــ **تولې**:-(ص) و ـــــ بې توله.

ـــــ **تبغه**:-(اص) (۱) بې تُوري ، تش لاس (۲) هغه بُوټے چې تبغ ئې نـهٔ وي راوتے، تخم چې نهٔ وي زرغون شوے.

ـــــ **ټانګه**:-(ص) (۱) عبث ، پُوچ ، فضول

چې بې ځایه ګوفتګو کوې بې ټانګه
ورک شه ستا ردوبـــدل د ایرو ډانګه (حمید)

(۲) مروت ، ډېر زیات

ـــــ **ټکاڼې**:-(ص) بې کوره ، بې خُونې ، بې ټکاؤنې.

ـــــ **ټکاؤنې**:-(ص) و ـــــ بې ټکا ڼې.

ـــــ **ټکټه**:-(ص) (۱) بې ټکسه ، چې ټکټ نهٔ لري.بې رنګه.(۲) اواره ، فضول ، لُوچه ، په خپل مخ ، بې حیا.

ـــــ **ټکسه**:-(ص) و ـــــ بې ټکټه.

ـــــ **ټکه**:-(ص) (۱) بغېر د ټک نه بې اواز (۲) بې اجازې ، بې تپوسـه بـې پوښتنې

ـــــ **ټکه ټُوکه**:-(ص) (۱) بې اوازه (۲) بې بندوبسه ، بې تُوغه ، بې تاوانه ، بغېر د وړو وړو خرڅونو نه ،په مفتو کښې ، بې تاوانه.

ـــــ **ټلـه**:-(ص) (۱) بـې بریـده ، د مقرره حد نـه اوښـتونکې (۲) (سو) هغـه څوک چې د شـېخ ملې د تقسیم پـه ټلونـو کښـې ئـې حصـه نـهٔ وي . (۳) بې ملګري ، بې ډلې.

ـــــ **ټوټه**:-(ص) بې طریقې ، بې تمیزه ، بې پېونده.

ـــــ **ټوقي**:-(ص) په رښتیا ، په حقه.

ـــــ **ټیکاوه**:-(ص) (۱) چې په یو ځاے نهٔ ایسارېږي (۲) ناقلاره.

ـــــ **ټیمه**:-(ص) (۱) بې وخته ، (۲) بې درکه ، غریب ، چې پیسې ورسره ختمې وي (۳) چې طبیعت ئې خراب وي.

ـــــ **ثباته**:-(ص) ناپائیدار ، کچه ، عارضې.

کـــه په څهٔ هنر دې دومره توان رسېږي
چې بــــه تهٔ کړې د مرګې لښکرې ماتې
بیا هاله په جهان خوښ ګرځه هوس کړه
ګـنـــه نـــوري اندېښنې دي بــې ثباتې (خوشحال)

ـــــ **ثباتي**:-(اس) ناپائیداري ، کچه والے.

ـــــ **ثقې**:-(ص) بې نوره ، بد رنګے.بې رعبه.

ـــــ **جدالَ**:-(ص) بې جګړې.

په سرو شونډو کښې ئې اور دے هم اوبهٔ دي
دواړه زیست کـــا په یو ځاے کښې بې جداله (حـــــافظ الپوری)

ـــــ **جلب یا بې جلبه**:-(ص) (۱) بې قابو ، بـې واګـې (۲) ازاد ، بـې قبـده ، بې پابندي.

تهٔ اودهٔ ورباندې سو ر ئې
اس دې یـــون کا بې جلبه (رحمان)

(۳) چې څوک ورسره ملګرے نهٔ وي (۴) پوچ خولے.

ـــــ **ځانه**:-(ص) (۱) چـې سـاه پـه کښـې نـهٔ وي -مـړ ، (۲) کمـزورے ، ضعیف (۳) غم زپلے ، غمجن (۴) هغه څیزونه چې ساه په کښـې نـهٔ وي ، جمادات.

ـــــ **ځانه**:-(ص) (۱) کمزورے ، مانده ، ډنګر ، لبغړے (۲) مړ ، بې دمـه (۳) بې پروا ، بې غمه.

د یار غم له خپله ځانه کړم بې ځـــانه
ځـــکه وېره د ځان ورکه شوه له مانه (حمید)

ـــــ **ځانه بې ځوله**:-(اص) په بد حال ، بې هوشه.

ـــــ **ځاني**:-(اس) کمزوري ، مانده توب ، ډنګر والے ، لبغړي.

ـــــ **ځایه**:-(ص) (۱) بې موقعې ، بې مناسبه ، ناجائز.

نصـیحت پــــه عاشقانـــو اثر نهٔ کا
دا محنت واړه بې ځایه بې قابو کړې (رحمان)

(۲) بې وجهې ، بې سببه.

د بلبـلو بېهودې بې ځایه نهٔ ده
چې مستېږي د ګلونو له شبنمه (حمید)

ـــــ **چاره**:-(اس) بې وسیلې ، غریب ، بې وسه ، پرېوتے ، مجبور.

د هـــغهٔ قـــــدر لـــــرم تـــرینـه ځـاربـړم
چې په غم کښې چاره جوئي د چاره بې چاره شو (خوشحال)

ـــــ **چرُوته**:-(ص) خفه ، غمجن ، زهیر ، ناخوښ ، چې چرُت ئې نهٔ وي برابر،اندېښمن ، بې مزې ، چې نشې پوره مزه نهٔ وي ورکړې.

**ـــــ چُرتي**:-(اس) خفګان ، غم ، اندېښنه.
**ـــــ څښتنه**:-(ص) (۱) چې څښتن ئې نـه وي.بې مالکـه.(۲) کونډه بې خاونده.
**ـــــ څنډې**:-(ص) چې غاړه ئې نه وي.بې ساحله ، بې مورګې .
**ـــــ څوکتيا**:-(اس) غريبي ، بېکسي ، عاجزي.
**ـــــ څوکه**:-(ص) بې اسرې ، غريب ، چې څوک نه لري.
**ـــــ څۀ**:-(ص)(۱) بغېرد څۀ وجهې نه (۲) بې سامانه ، خوار ، بې پيسو.
**ـــــ حاجته**:-(ص) (۱) چې حاجت نۀ لري ، (۲) بې غرضه ، بې سببه
**ـــــ حاصله**:-(ص) بې فائدې.
**ـــــ حاله**:-(ص) بې خُوده.بې هوشه،چې په حال کښې نۀ وي.بدحال
**ـــــ حالي**:-(اس) بې خودي ، بې هوشي ، بدحالي.
**ـــــ حجابه**:-(ص) (۱) بې ستره ، څرګند ، ښکاره ، بربنډ ، رمنډ

حـجاب لرې کړه زما د يار ترميانه
بې حجابــه مخ د يار راته عيان کړې (رحمان)

(۲) بې عزته ، شرمېدلے.
**ـــــ حده**:-(ص) بې اندازې ، بې بريده ، ډېر زيات.

د عـاشق لــه حالـه څۀ پوښتې وګړے
د بې حدې لارې قياس دے وچا کړے (مرزاخان انصاري)

**ـــــ حد وعد**:-(ص) بې حسابه ، بې شمېره ، ډېرزيات، مچ مېږې.
**ـــــ حرکته**:-(ص) (۱) چې حرکت نۀ کوي . ساکن ، (۲) بې خوارۍ، بې کوښښه
**ـــــ حرمته**:-(ص) بې عزته ، بې ابه.
**ـــــ حرمتي**:-(اس) بې عزتي ، بې ابي.
**ـــــ حسابه**:-(ص) (۱) بې حده زيات ، ډېر زيـات (۲) چې حسـاب کتـاب په کښې نۀ وي
**ـــــ حسه**:-(ص) (۱) بې هوشه ، بې حرکتـه ، (۲) چې حس نۀ لـري ، بې غېرته ، بې شرم ، بې حيا .
**ـــــ حسي**:-(اس) بې شرمي ، بې غيرتي ، بې حيائي.
**ـــــ حوصلې**:-(ص) بې همته ، لنډ پارے.
**ـــــ حيا**:-(ص) بې لحاظه ، بې شرم ، چې حيا نۀ لري .بې باکه.
**ـــــ حيائي**:-(اس) بې شرمي ، بې حياتوب ، بې نوي.
**ـــــ خاوند توب**:-(اس) بې خاوندي،بې څښتني،چې خاوند نۀ لري.
**ـــــ خاونده**:-(ص) و ـــــ بې څښتنه.
**ـــــ خاوندي**:-(اس) و ـــــ بې خاوند توب.
**ـــــ خبر يا خبره**:-(ص) چې خبر نۀ وي.ناواقف ، نابلده.

بــې خـــبر ئې نــوبهــار د حــنا بولي
ستا په لاس کښې تازه ګل له شرمه اب شه (کاظم خان)

**ـــــ خبري**:-(اس) ناواقفتيا ، نابلدي.
**ـــــ خُټو**:-(ص) (۱) خصي ،چې خُټې نۀ لري (۲) يربدُونکے ، ډارن، بُزدل (۳) بې غېرته ، بې حسه ، کم همته ، بېکاره.
**ـــــ خرته**:-(ص) ډېر زيات ، د حد نه هور ته.
**ـــــ خرڅه**:-(ص) (۱) بې تاوانه ، بې پيسو ټکو (۲) چې پـه جيب کښـې پيسې نۀ لري.تش لاس ، بې توښې (۳) بدخرڅه ، لُوڅه.
**ـــــ خطا**:-(ص) بې قصوره ، چې غلطي ئې نۀ وي.
**ـــــ خطائي**:-(اس) بې قصوري.
**ـــــ خطره**:-(ص) بې خطرې ، بې ويرې ، بې ډاره.
**ـــــ خولې**:-(ص) بې ژبې ، کم ژغېدونکے ، خاموش طبيعته ، غلے

**ـــــ خلېته**:-(ص) بې عېبه ، بې نقصه ، بې وټه .
**ـــــ خوبه**:-(ص) چې خوب ئې نۀ وي ، بې ارامه.
**ـــــ خوبي**:-(اس) بې ارامي.
**ـــــ خوده**:-(ص) چې په خود کښې نۀ وي.بې هوشه.
**ـــــ خودي**:-(اس) بې هوشي ، د نشې حالت.

چې اثر د بې خودۍ تــرې پېدا کېږي
تــل بــرجـــنه اوسه ونـه د عنـب (عبدالقادر)

**ـــــ خوښې**:-(ص) په نۀ زړۀ ، چې مرضي ئې نۀ وي.
**ـــــ خونده**:-(ص) (۱) بې مزې،چې خوند نۀ لري (۲) کمزورے ، پرېوتے.

هسې زۀ بې خونده خاندم په هــجران کښې
لکـــه خانـــدې سر د پسۀ پــه اور الـوے (حميد)

**ـــــ خونده خبرې کول**:(ص) بې مزې خبرې کول، فضوله او پُوچه وينا کول
**ـــــ خونده کول**:-(ص) بې مزې کول ، سپکول.
**ـــــ خونده کېدل**:-(ص) (۱) بې مزې کېدل،سپکېدل (۲) کمزورے کېدل.
**ـــــ خوندي**:-(اس) (۱) بې مزې توب ، (۲) بدحالي ، کمزوري.
**ـــــ خُوني**:-(ص) بې کوره ، چې کور اور نۀ لري ، بې ټکانې.
**ـــــ داده** :-(ص) ظالم ، ناترسه ، چې زړۀ ئې نۀ سوي.
**ـــــ دادي**:-(اس) ظلم ، ناترسي ، ناکړدې.

لکه تۀ چې ئې په خپله په خپل ځان کړې
دښمن نـــۀ کـــا پـه دښمن دا بېدادي (حميد)

**ـــــ داغ يا داغه**:-(ص) (۱) چې داغ نۀ لري،صفا ،بې عېبه،بې تهمته

اے زمـــا تـــنها خـــاطره کم زاغه
چا صحبت درسره ګرم کړ بې داغه (کاظم خان)

(۲) هغه پخکړے چې د غوړو ، پياز يـا اُوړې داغ نۀ وي ورکړے شـوے (۳) هغه مېوه چې خرابه شوې نۀ وي.
**ـــــ دانه**:-(ص) (۱) چې دانه پـه کښې نۀ وي (۲) يـو قسم انګور(۳) يـو قسم سپين توت
**ـــــ دخل يا دخله**:-(ص) ويستلے شوے ، خارج کړے.
**ـــــ دخلي**:-(اس) خارج کونه ، يو ځاے نه ويستنه.
**ـــــ درد يا درده**:-(ص) چې درد نۀ لري .سخت زړے ، ظالم ، ناترسه ، بې رحمه ، (ج : بې دردان).
**ـــــ دردي**:-(اس) ظلم ، ناترسي ، سخت زړيتوب ، بې رحمي.
**ـــــ درکه**:-(ص) (۱) چې درک ئې نۀ لګي .بې پتې لګتې ورک، (۲) بې خرڅه بې پيسو (۳) سر وهلے بروهلے ، په بد حال.
**ـــــ درنګه**:-(ص) (۱) بې کانـه ، بغېر د درنګ نـه ، (۲) بې خرتـه ، بې دربغه ، بې يرې.

د عــزت صـدقه سر د سر دنيا ده
مړني په دنيا سر ورکا بې درنګه (يونس)

(۳) بغېر د ايسارتيا ، زر ، سمدستي.
**ـــــ دربغه**:-(ص) بې حسابه ، بې خرته ، بې يرې.
**ـــــ دست و پا**:-(ص) (۱) بې لاسو پښو (۲) مجبور ، بې اسرې.
**ـــــ دستوره**:-(ص) (۱) بـې نرخـه ، بـې طريقې ، بـې دوده ، بـې رواجـه (۲ ډېر زيات ، بې حسابه ، (۳) بې ائينه ، بې قانونه.
**ـــــ دستوري**:-(اس) بې نرخي ، بې طريقې والے.
**ـــــ دل يا دله**:-(ص) (۱) بې زړيه ، بې زړۀ ، يرندُوکے ، ډارن

چېرته شېخ چېرته تندې د عشق حميده
چـېرتـــه جنګ چـــېرتـــه بې دله ارتينه

(ج : بې دلان )
غواصان که ګوهر غواړي ګوهر دا دے
بے دلان کــــه دلـبر غواړي دلبر دا دے (رحمان)
(۲) ناترسه ، ظالم.
**ـــــ دلي**:-(اس) (۱) يره ، ډار ، (۲) ظلم ، ناترسي.
**ـــــ دماغ يا دماغه**:-(ص) چې دماغ ئې نۀ وي. تش کدو ، بې عقل چې کپرۍ ئې د مازغو نه خالي وي.
د حُبــاب پــه دود ئې سر وي بې دماغه
چې نظر په عظم وشان د لوے درياب کا (کاظم خان)
**ـــــ دمه**:-(ص) (۱) سترے ستومانه ، (۲) بې خوره.
**ـــــ دوتره**:-(ص) (۱) هغه څوک چې زمکه نۀ لري (۲) سو : هغه څوک چې د شيخ ملي په تقسيم کښې برخه نۀ وي.
**ـــــ دوده**:-(ص- و ـــــ بې دستوره.
ما بې دوده نوستي کړه منجبدلم
عاقبـت ئې پـــه کمند وځکيرلم (خوشحال)
**ـــــ دوشه**:-(ص) بې متېه ، د اوړې د مدد نه بغير.
راشه ګوره د کاکل سـياه مستۍ ته
يو قدم پــه لاره تلے نــۀ شي بې دوشه (کاظم خان)
**ـــــ ديدنه**:-(ص) بې ليدو ، بې ملاقاته.
چيتۍ دې راغله ته رانغلې
په کار مې نۀ دي بې دېدنه سلامونه (ټپه)
**ـــــ ديده**:-(ص) (۱) بې ديدنـه ، (۲) بې سترګو ، چې نظر ئې نۀ لګي (۳) بې پوهې ، کم عقل.
**ـــــ دينه**:-(ص) (۱) بې مذهبه،بد مذهبه ، کافر
د ديندارۍ ارتينې له يوې کوښې
صـدقــه شه سل بې دينــه نرينه (رحمان)
(۲) بې ټله (۳) بې قوله و بې لوزله ، بې اتباره.
**ـــــ ديني**:-(اس) بې مذهبي ، کفر.
بې ديني او کمــال لرې لرې کار دے
اے جنابه که غزني غواړې ديندار شه
**ـــــ ډاډه**:-(ص) بې اطمينانه ، بې قراره.
**ـــــ ډاډي**:-(اس) بې اطميناني ، بې قراري.
**ـــــ ډبه**:-(ص) (۱) بې وهلو ټکولو ، (۲) بې طريقې ، بې چتې ، بې عقله ، ناپوهه.
**ـــــ ډول يا ډوله**:-(ص) سخا ، بې طريقې ، بې رونقه.
**ـــــ ډولتوب**:-(اس) بې ډولتيا ، بې ډولي ، بې رونقي ، سخاتوب.
**ـــــ ډولتيا**:-(اس) و ـــــ بې ډولتوب.
**ـــــ ډولي** :-(اس) و ـــــ بې ډولتوب.
**ـــــ ډوے**:-(ص) بې باک.
**ـــــ ډيله**:-(ص) بې تاخير ، زر ، چې سستي پکښې نۀ اوشي.
د يوسف په شکل شان له رودِ نيله
جلوه ګر په لور د مصر شه بې ډِيله (حميد)
**ـــــ ربړه** :-(ص) بې تکليفه ، بې سترې ، بې ډګرې.
**ـــــ ربطه**:-(ص) بې ترتيبه ، بې تعلقه.
**ـــــ رحمه**:-(ص) و ـــــ بې درده.
**ـــــ رحمي** :-(اس) و ـــــ بې دردي.
**ـــــ رُخه**:-(ص) (۱) بې طرفه ، په بل لور ، بې لار ، (۲) بې ملاحظې بې پامه ، بې توجهه ، بې لحاظه ، بې مخه.
**ـــــ رُخي**:-(اس) بې پامي ، بې توجهي ، بې لحاظي.
دا بــې رُخي دا بېوسي دا بې طلبه ژوندون
راته وے چې تۀ راځې نو دا قصې به نۀ وي (طائر)
**ـــــ رنګه**:-(ص) (۱) چې رنګ نۀ لري ـ سخا ، بې ډولـه (۲) هغـه چيتۍ چې ټکټ يا خو پرې لګېدلے نۀ وي او يا کم لګېدلے وي. (۳) بې مخـه ، بې لحاظـه (۴) خوار ،غريب،بې پيسـو (۵) ناکاميابـه ، چې مقصد حاصل نۀ شي.
**ـــــ رنګي**:-(ص) (۱) بې لحاظي، بې معني (۲) بې خوندي.
**ـــــ رواجه**:-(ص) بې دوده ، بې دستوره ، د رواج نه بهر.
زنخدان ئې د بـاغ سېب کړه بې رواجه
په ښارګ ئې ښائست که د سيمبر مات (دولت لواڼے)
**ـــــ رُر ريا**:-(ص) بې د څۀ مخ ملاحظې ، بې رُر رعايت.
**ـــــ روزګاره**:-(ص) بې کاره ، ليه.
**ـــــ روزګاري**:-(اس) بې کاري.
**ـــــ رونقه**:-(ص) چې رونق نۀ لري.سخا ، خراب ، بې مزې.
**ـــــ رونقي**:-(اس) سخا والے ، سخاتوب ، خرابي.
**ـــــ روه**:-(ص) (۱) هغه ځاے چې لار په کښې نۀ وي. بې ګودره . (۲) بې لارې او بـد کـرداره سړے ، بې لحاظه (۳) بې طريقې
عجيــبه بــې روه لار ده
عجيبه پرې ځي کاروان
که قدم واخلم غورځېږم
کــه ودرېږمــــه تاوان (غني خان)
(۴) په خپله خبره ټينګ نۀ ولاړ.
**ـــــ روه تلل**:-(اص) (۱) بې لارې تلل ، غلط تلل (۲) کج بحثي کول
**ـــــ روه کېدل**:-(اص) بې لارې کېدل ، ګمراه کېدل.
**ـــــ روے**:-(ص) هغه سړے چې په خبرو کښې ډېر تېز وي .بې تهذيبـه ، سپک.
**ـــــ رويه**:-(ص) (۱) بې عزته او بې ابرو (۲) بد لحاظه.
وهر چاته په خپل شکل ځرګندېږم
ائينې غـونـدې بې رويه بې ريا يم (رحمان)
**ـــــ ريا**:-( چې پـه مـخ ملاحظه کـار نۀ کوي .د يـوې لارې ، ريښـتونے ، سپين ډاګے.
**ـــــ ريشه**:-(ص) بې رېرې ، چې رېره ئې نۀ وي .پـېمخے يـا سپينه خولۀ هلک.
تا چې طمع د وفا کړه له بې رېشو
ساده دلـــه لااوښتے په چا نۀ وې (عليخان)
**ـــــ ريشي**:-(ص) چې ريشه ئې معلومه نۀ وي. بې اصله ، بې بنياده.
**ـــــ زبان يا زبانه**:-(ص) (۱) بې ژبې ، بې خولې، چې ژغېدے نۀ شي. د ژبې پخ (۲) حېوان ، ځناور ، (۳) وعده خلاف ، بې لوظه.
**ـــــ زباني**:-(اس) بې ژبې ، وعده خلافي ، لوظ نۀ پوره کول.
**ـــــ زحمته**:-(ص) بې تکليفه ، بې کړاوه ، بې سترې.
راحت بې زخمته نۀ دے چا موندلے
غم ښادي ده د دې دهر ورور او خور (رحمان)
**ـــــ زړۀ يا زړيه**:-(ص) ډارن ، يرنډُوکے ، پرېډُونکے ، بُزدل.
**ـــــ زړۀ توب**:-(اس) بې زړۀ تيا ، بې زړۀ والے ، ډارن توب ، يره.
**ـــــ زړۀ تيا**:-(اس) و ـــــ بې زړۀ توب.

ـــــ **زړۀ والے**:-(اس) و ـــــ بې زړۀ توب.
ـــــ **زغمه**:-(ص) چې زغم نۀ لري ، بې حوصلې ، چې د برداشت طاقت ئې نۀ وي
ـــــ **زوره**:-(ص) بې طاقته ، کمزورے ، غريب.
ـــــ **زوري**:-(اس) بې طاقتي ، کمزوري ، غريبي .
ـــــ **ژبې**:-(ص) و ـــــ بې زبان.
ـــــ **ژبي**:-(ص) و ـــــ بې زباني.
ـــــ **سا**:-(ص (۱) بې سهيلې ، بې هوشه ، بې سُده (۲) مړ.
ـــــ **سامان يا سامانه**:-(ص) چې سامان نۀ لري .بې برګه ، بې اسبابه بې بندوبسته.

هسې عشق لرم بې صبره بې سامانه
چې ئې واړه سر سامـان راخخه يوړو (کامګار)

ـــــ **سببه**:-(ص) بې وجهې ، هېڅ بې هېڅه.
ـــــ **سپوته**:-(وز) ص.بد رنګ ، سخا ، بدشکل ، بد صورته.
ـــــ **سترګو**:-(ص) (۱) چې سترګې ئې نۀ وي.ړوند (۲) بې شرم،بې حيا .
ـــــ **ستره**:-(ص) بې پړدې.
ـــــ **ستري**:-(اس) بې پړدګي.شرمندګي.
ـــــ **سته**:-(ص) بغېر ست نه،نابللے،مامه شمېره درګڼ يم ، بې پوښتنې.
ـــــ **سته ګډېدل**:-(ص) (۱) نابللے شاملېدل ، خپل پخپله يا بې وېنا په ډوډۍ کښېناستل ، (۲) بې موقعې خبره کول.
ـــــ **سُدتيا**:-(۱) بې هوشي ، بې سُري.
ـــــ **سُده**:-(ص) (۱) بې هوشه ، بې سا (۲) کم عقل.
ـــــ **سُري**:-(اس) (۱) بې سُرتيا ، بې هوشي ، کم عقلي.
ـــــ **سر يا سره**:-(ص) (۱) چې سر نۀ لري (۲) په خپـل سر ، پـه خپـل مـخ، بې سرپرسته ، اواره ، لُوچه.

په رښتيا که تۀ لېلى نۀ ئې زۀ چا کړم
د مجنون په څېر بې سراو بې سامانه (حميد)

ـــــ **سرتوب**:-(اس) خود سري ، بې سره والے ، بې سري.
ـــــ **سرويا**:-(ص) (۱) چې سر پښې نۀ لري (۲) بې بنياده ، دروغ.
ـــــ **سرويائي**:-(اس) بې ساماني ، چې هېڅ نۀ لري.

نمر به څۀ له تا سيالي کا
پـــه دا بـــې سروپـــائي (رحمان)

ـــــ **سره او بې ښکره کېدل**:- بې سر پرسته کېدل ، اواره ګرد او لُوچه جوړېدل.
ـــــ **سره والے**:-(اس) و ـــــ بې سرتوب.
ـــــ **سري**:-(اس) و ـــــ بې سرتوب.
ـــــ **سُره**:-(ص) (۱) چې سُر ئې نۀ وي برا بر ، بې اوازه ، چې اواز ئې ښـۀ نۀ وي.(۲) بې چُرته ، بې طمعې.
ـــــ **سله**:-(اف) ص ، هغه څوک چې د بې مـالګې يا بلمنګې ډوډۍ په وجه لوږه ختمه شي.
ـــــ **سليقې**:-(ص) بې طريقې ، بې ډېه.
ـــــ **سُود يا سُوده**:-(ص) (۱) چې سُود نۀ وي پرې اخستے شوے .(۲) بې فائدې عبث ، خوشې.
ـــــ **سوده بې بُوده**:-(اص) بې فائدې،تش لېه،چې هېڅ فائده ئې نۀ وي.
ـــــ **سوده بې سلمه**:- بغېر د ګټې وټې ، بې فائدې.
ـــــ **سول**:- (ص) بې هوش.
ـــــ **سُوله**:- (ص) کم عقل ، خيله بودلے ، بوتل خان.

ـــــ **سيکه**:- (ص) بې طاقته ، کمزورے ، ضعيف ، ناتوانه.
ـــــ **سېکي**:- (اس) بې طاقتي ، کمزوري ، ضعيفي ، ناتواني.
ـــــ **شانه**:- (ص) (۱) چـې شـان نـۀ لـري (۲) ډېـر زيـات،بې انـدازې،بې حسابه
ـــــ **شانه بې شوکته**:- (ص) بې رُعبه ، چې دبدبه نۀ لري ، بې ثقې، بې ډوله.
ـــــ **شبهې**:- (ص) بې شکه ، په حقه ، په رښتيا .

بې اختيـاره چـې ورزغلـم نۀ ويرېږم
بې شبهې دې تول صورت دے کهريا (خواجه رزق الله)

ـــــ **شرم يا شرمه**:- (ص) و ـــــ بې حيا
ـــــ **شري**:- (اس) و ـــــ بې حيائي.
ـــــ **شره** :- (ص) بې جګرې ، بې شوره .
ـــــ **شعوره** :- (ص) چې شعور نۀ لري ، بې حسه ، ناپوهه.
ـــــ **شعوري**:- (اس) بې حسي ، ناپوهي.
ـــــ **شکه**:- (ص) و ـــــ بې شُبهې.
ـــــ **شماره**:- (ص) چې شمار ئې نۀ وي.بې حده بې حسابه ،ډېر زيات.

ثواب ورکاندې اے ياره!
دې بنـده لـره بې شماره (اخون دروېزه)

ـــــ **شماره بې قطاره**:- (اص) ډېر زيات ، بې حسابه.
ـــــ **ښځې** :- (ص) چې ښځه ئې نۀ وي.لونډ ، جره ، کونډ .
ـــــ **ښهاني**:- (ص) بې فائدې ، بې ګټې وټې ، بې ښې.
ـــــ **ښې** :- (ص) بې فائدې ، بې بُوده.
ـــــ **ښې بې بدې** :- (اص) (۱ هېڅ بې هېڅه ، اوچ په اوچه ، په ناحقه نـر پـه ناحقه (۲) چې نۀ د چا د ښودې نۀ د بدو .
ـــــ **صبره**- (ص) چې صبرنۀ لري.لالچې،اري وړے ، اروأوړے، حريص.

هر نا اهل ته سرکوزے کړم تا ولې
اے زما بې صبره زړۀ زما سر کوبه (حميد)

ـــــ **صبري**:- (اس) حرص ، لالچ ، ارواوړتوب.
ـــــ **صرفې** :- (ص) چې صرف نـۀ کـوي .بـې يـرې ، بې سوچه ، چې حيله پرې نۀ کوي.

تا به هسې بې صرفې قتلونه نۀ کړل
که دې ويره شوے له خونه له عزابه (خوشحال)

ـــــ **صلاح** :- (ص) بې مشورې ، په خپل مخ.
ـــــ **ضابطې** :- (ص) بې قانونه ، بې لارې.
ـــــ **ضرره** :- (ص) بې نقصانه.
ـــــ **ضرري**:- (اس) بې نقصاني.
ـــــ **ضروورته** :- (ص) چې ضرورت ئې نۀ وي.
ـــــ **ضروره** :- (ص) سوکه ، بې تکليفه ، بې کړاوه.
ـــــ **طاقته**:- (ص) (۱) بې توانه ، کمزورے ، مانده ، بدحاله

هسې شان شوم په هجـران کښې بې طاقـته
آه فـريـــاد نـالـــه افـغان شو لـه ما پاتـه (کاظم خان)

(۲) غريب ، **عاجز** ، ناچاره ، چې پيسې ټکې نۀ لري.
ـــــ **طاقتي**:- (اس) (۱) کمـزوري ، بـې تـواني ، بـد حـالي (۲) عـاجزي ، غريبي ، ناچاري
ـــــ **طبعې**:- (اس) بې طبيعته ، ناروغه ، ناجوړه ، ناخوښه.
ـــــ **طبيعته**:- (ص) و ـــــ بې طبعې.
ـــــ **طبيبه**:- (ص) بې حکيمه ، بې معالجه ، بې ډاکټره.

ـــــ **طلب یا طلبه**:- (ص) (۱) بې غوښتنې، بې لټونې (۲) بې خوښې.

د مجاز په ژوندون څۀ لره نازېږې
بې طلب په لار ولاړ دے لکه څلے (مرزا خان انصاري)

ـــــ **طمعې**:- (ص) بې لالچه ، بې حرصه ، بغېر د طمعې نه.

دا علم به هېڅ مطیع نۀ کړې بې طمعې
شیــــرینې کـــــه د خُلق ډېره درڅخه ده (کاظم خان)

ـــــ **عدده** :- (ص) بې حسابه ، بې شماره ، د حد نه زیات.

سلامونه دې زمـــا وې صد هزار
بې عدده، بې مقداره، بې شمار (ملا نعمت الله)

ـــــ **عزته** :- (ص) چې عزت نۀ لري ، بې شرمه ، بې حیا ، سپک .

ـــــ **عزته کول**:- (اص) سپکول ، شرمول .

ـــــ **عزته کېدل** :- (اص) شرمېدل ، سپکېدل.

ـــــ **عزتي**:- (اس) بې شرمي ، بې حیائي ، سپکوالے.

ـــــ **عقله**:- (ص) چې عقل نۀ لري.کم عقل ، ناپوهه ، خېلا .

هم پـــه دا عقل بې عقله معلومېږې
چې په زور د مېږې نیسې لار دفیل (حمید)

ـــــ **عقلي**:- (اس) کم عقل توب ، ناپوهي ، خېلاتوب.

دا ئې واړه نـــا اهلي ده که پوهېږې
چې هوس د نورو خلقو په بیان کړې (عبدالرحیم هوتک)

ـــــ **علاجه**:- (ص) ناعلاجه ، چې علاج ئې نۀ کېږي ، بې دوا .

ـــــ **علتـه**:- (ص) (۱) بـې سببه ، بـې وجهـې (۲) چـې بیمـار نـۀ وي .بـې رنځورتیا (۳) بې نقصه ، بې عېبه ، پاک.

عـام وخاص به واړه په دا باندې هم پوهېږې
کـــله څوک طبیب لـــره وردرومي بې علتــه (خواجه محمد )

ـــــ **علمه**:- (ص) چې علم نۀ لري ، جاهل ، ان پړه .متل : '' بې علمـه چې شېخي کا ، دغه کفر ئې بس دے ''.

ـــــ **علمي**:- (اس) جهالت ، ناپوهي ، ان پړه توب.

ـــــ **عمله** :- (ص) چې عمل نۀ لري ، چې عمل نۀ پرې کوي.

علـــــمیت د بـــــې عمله عالمانو
لکه گنج د کتابونو په خرۀ بار شۀ (رحمان)

ـــــ **عملي** :- (اس) عمل نۀ کونه.

ـــــ **عېبه**:- (ص) چې عېب نۀ لري ، بې علته ، پاک.

ـــــ **عېبي**:- (اس) بې علتي ، پاکوالے.

ـــــ **غاښتوب** :- (اس) بې غاښتیا ، چې غاښ ئې نۀ وي .بـې غاښـوالې ، بې غاښي.

ـــــ **غاښتیا** :- (اس) و ــــــ بې غاښتوب.

ـــــ **غاښو** :- (ص) (۱) چې غاښ ئې نۀ وي.بې غاښه (۲) بې ضرره.

ـــــ **غاښو خولۀ**:- (اص) کونه ، مقعد .

ـــــ **غاښه**:- (ص) و ــــ بې غاښو.

ـــــ **غاښي**:- (اس) و ــــ بې غاښتوب.

ـــــ **غرضه** :- (ص) بغېر د څـۀ غـرض نه ، د خدا ے دپاره ، د حق دپـاره ، بې لوټه

ـــــ **غرضي**:- (اس) بې غرضتیا ، غم غرض نۀ کونه ، بې لوټي.

ـــــ **غمه** :- (ص) (۱) چې غم نۀ لري ، بې پروا (۲) بې فکره.

ـــــ **غمي**:- (اس) بې پروائي ، بې فکري.

بـــې غـــمي په دنیا چېرته ده رحمانه
یو بې غم دې څوک راوښائي کرام دے

ـــــ **غوره**:- (ص) (۱) بې فکره ، بې غمه ، بې پامه (۲) بې پروا ، توجه نۀ ورکوُونکے.

ـــــ **غوري** :- (اس) بې توجهي ، بې پروائي ، بې پامي ، بې فکري.

ـــــ **غوږو** :- (ص) (۱) چې غوږونه ئې نۀ وي (۲) کم عقل.(۳) چې خبره نۀ اوري

ـــــ **غېرته** :- (ص) (۱) چې غېرت نۀ لري (۲) دوُوس ، بـډوې ، بـې ننگه ، بې پته.

چې صبا په خپلو بدو پښېمانېږې
ولې نن پښېمانه نۀ شې بې غېرته (حمید)

ـــــ **غېرتي** :- (اس) (۱) دوُوسي ، بړواتوب (۲) بې ننگي ، بې پتي.

ـــــ **فائدې**:- (ص) چې فائده نۀ لري ، فضول.

ـــــ **فکره**:- (ص) و ــــ بې غمه.

ـــــ **فکري** :- (اس) و ــــ بې غمي.

ـــــ **فهمه** :- (ص) (۱) بـې فکـره ، بـې سوچه ، بـې پامـه ، بـې عقلـه ، بـې پوهې (۲) ناځایه ، ناگمانه.

ـــــ **فهمي**:- (اس) بې فکري ، بې عقلي ، ناپوهي.

اول کـار په بې فهمي په ناداني څۀ
اخر کار ئې بې حاصله پښېماني څۀ (یونس خلیل)

ـــــ **فېضه** :- (ص) بې فائدې ، بې گټې ، عبث ، فضول، بې حاصله

ـــــ **قابو** :- (ص) قابو نه بهر ، سرکش، بې واکه ، بې جلبه.

ـــــ **قاعدې** :- (ص) بې طریقې ، بې ضابطې ، بې ترتیبه.

ـــــ **قدره** :- (ص) بې عزته ، سپک .

ـــــ **قدري** :- (اس) بې عزتي ، سپکوالے.

ـــــ **قرار یا بې قراره** :- (ص) ناقلاره ،په غم کښې اخته.

لکه موج بې قرار کړم خپلو اوښکو
چې مې لاندې تر پهلو شو بستر آب (کاظم خان)

ـــــ **قراري**:- (اس) ناقلاري.

ـــــ **قصوره** :- (ص) و ــــ بې خطا.

ـــــ **قصوري** :- (اس) و ــــ بې خطائي.

ـــــ **قوته** :- (ص) بې طاقته ، کمزورے ، ناتوانه ، بې زوره.

ـــــ **قوتي**:- (اس) بې طاقتي ، کمزوري ، ناتواني ، بې زوري.

ـــــ **قوله** :- (ص) بې ژبې ، بې لوظه ، بې زبانه ، بې اتباره.

ـــــ **قولي** :- (اس) بې لوظي ، بې اتباري.

ـــــ **قیاسه**:- (ص) بې اندازې ، ډېر زیات ، بې حسابه.

د زړگوټي سر مې تۀ ئې
که یاران لرم بې قیاسه (خوشحال)

ـــــ **قېده** :- (ص) بغېر د پابندی نه ، بې رُکاوټه .

ـــــ **قیمته**:- (ص) (۱) لیه ، بې پیسو ، هسې ، بې بیعې (۲) بې بها ډېر قیمتي.

ـــــ **کار یا کاره** :- (ص) (۱) بې چارې ، لیه ، فارغ ، وزگار

رحـــمان هسې وزگار کله دے له عشقه
چې غوږ ونیسي ناصح غوندې بے کار ته

(۲) فضول (۳) نامرد .

ـــــ **کاره بې کسبه**:- (اص) لُوگ لیه،هغه څوک چې کار کسب نۀ کوي.

ـــــ **کاري**:- (اس) وزگارتیا ، لیه والے ، د کار کسب نیشتوالے.

ـــــ **کډې**:- (ص) بې کوره ، بې سامانه ، چې ښځه ئې نۀ وي.لوچ لغړ بې ماندینې ، بې مانیې.

ـــــ **کس یا کسه** :- (ص) مجبور ، یکې یواځې

د بې کس پـــه مـــاتم کله چا نعرې کړې

څوک په مرګ د شمعې ولیدو غمګین چا (کاظم خان)

ـــــ **کسه**:- (ص) بې هنره ، چې کار کسب ئې نۀ وي زده ـ

ـــــ **کسبي** :- (اس) بې هنري ـ

ـــــ **کسي** :- (اس) مجبوري ، لاچاري ـ

بې کسي مې دلاسې ته خود راپاڅي

کـه پـه ډېرو نعرو کښېني زما غاړه (کاظم خان)

ـــــ **کفنه** :- (ص) چې کفن ئې نۀ وي ، بربنډ ، لغړ ـ

ستا غمزو وهلي واړه شهیدان دي

شهیـــدان واړه ښخ ېږي بې کفنه (اودل)

ـــــ **کورولے**:- (اس) بې کوري ، چې کور ئې نۀ وي ـ چې ښځه ئې نۀ وي ـ جره توب ، لونډ توب ـ

ـــــ **کوره** :- (ص) (۱) و ـــ بې کډې (۲) بې مزې ، ب چُروتـه ، بې سُره ناروغه ، حېران ، پرېشان ـ

ـــــ **ګونګه**:- (ص) کمزورے ، ناتوان ـ

ـــــ **کینې** :- (ص) چې کینه نۀ لري ، بې بغضه ـ

چې زغمم ستا د رقیب بـدې فتنې زۀ

یاره کـــله یـــم دا هسې بـې کینې زۀ (حمید)

ـــــ **ګټې**:- (ص) بې کمائي ، بې فائدې ، بې امدنه ، بې ښې ـ

ـــــ **ګټې خواري**:- (ص) بې فائدې ، کړان ، هغه مزدوري مشقت یا خواري چې سُود ئې نۀ وي ـ بې سوده بې بوده ځان سترے کول ـ

ـــــ **ګمانه**:- (ص) ناڅاپه ، د نیامه ، اچانک ـ

ـــــ **ګناه** :- (ص) بې قصوره ـ

ـــــ **ګناهي** :- (اس) بې قصوري ـ

ـــــ **ګودره** :- (ص) بې لارې ، بې طریقې ـ

ـــــ **لارې** :- (اس) (۱) ګمراهي ، پـه غلطه سـر کېدنـه ، بې لارې تـوب (۲) د رواج او د قاعدې خلاف ، بې نرخه ـ

ـــــ **لارې** :- (ص)(۱) بې ګُودره ، (۲) په غلطه سم ، ناجائزه ، ګمراه

بې استاده شاعري بې لارې تلۀ دي

یـاوه ګوئي ګرځي په لوړو په ژورو (خوشحال)

ـــــ **لارې توب** :- (اس) و ـــ بې لارې ـ

ـــــ **لاسو او بې پښو** :- (ص) (۱) چې لاس پښې ئې نـۀ وي (۲) مجبـور موتازه ، بېکس

ـــــ **لحاظه** :- (ص) چې لحاظ نۀ کوي ، بې مخ ملاحظې ، سپین سترګے ، بې مخه

ـــــ **لحاظي** :- (اس) سپین سترګ توب ، بې مختوب ، بې مخي ـ

ـــــ **لُطف** :- (ص) (۱) بې خونده ، بې مزې (۲) نامهربانه ـ

ـــــ **لکې** :- (ص) (۱) چې لکې نۀ لري (۲) کم عقل،ناپوهه، بې وقوف ـ

ـــــ **لګام یا لګامه**:- (ص) (۱) بې ولونې،بې قیزې (۲) بې باکه ، ازاد ـ

ـــــ **لمه** :- (ص) چې لم نۀ لري ـ

ـــــ **لوټ یا لوټه** :- (ص) (۱) بې طمعې ، بې لالچه (۲) مخلص ـ

ـــــ **له** :- (ص) بغیر ددې نه ـ

ـــــ **لېښې بې دېښې** :- (اص) اوچ په اوچه ، هېڅ بې هېڅه ، بغېر د څۀ لـېن دېن نه، بې وجهې ، بې سببه ـ

ـــــ **مالګې** :- (ص) (۱) چې مالګـه پـه کښې نـۀ وي ، بې نمکـه ، بلمنګـه (۲) بې نوره ، سخا ـ

ـــــ **مان توب** :- (اس) و ـــ بې ایماني ـ

ـــــ **ماندینې** :- (ص) و ـــ بې کډې ـ

ـــــ **مانه** :- (ص) و ـــ بې ایمان ـ

ـــــ **مانی** :- (اس) و ـــ بې ایماني ـ

ـــــ **مانیې** :- (ص) و ـــ بې کډې ـ

ـــــ **متهو** :- (ص) (۱) بې وزرو ، چې متې نۀ لري (۲) چې مـلا تـړ نـۀ لـري ، بې خپله بې پرګه ، په سړو کمزورے ـ متل :- '' خدایه دښمن تـه مې بې متهو مه کړې ''

ـــــ **مثال یا مثاله** :- (ص) چې مثال نۀ لري ، لاثاني ، ډېر غوره ـ

ـــــ **مجال یا مجاله** :- (ص) بې وسه ، بې طاقته ـ

چې لـه خپلو لاسو پښـو شي بې مجاله

له غلیم سره به جنګ په کوم مجال کا (حمید)

ـــــ **محله** :- (ص) بې ځایه ، بې موقعې ـ

ـــــ **محنته** :- (ص) بې سترې ، د کار نه بغېر ـ

بې محـنته راحـــت نـــۀ دے چـا موندلے

خوشحالي نصیب د چا چې ئې دلګیر کړه (عبدالقادر ختک)

ـــــ **محیطه** :- (ص) (۱) بې احـاطې ، بې حـده (۲) بې اُوبـو ، بې دریابـه ، بې سمندره ـ

زۀ رحـمان بې یاره هسې شول وشل یم

لکه کب چې بې محیطه شول وشل وي

ـــــ **مختوب** :- (ص) و ـــ بې لحاظي ـ

ـــــ **مخه** :- (ص) و ـــ بې لحاظه ـ

ـــــ **مخي** :- (اس) و ـــ بې لحاظي ـ

ـــــ **مخې** :- (ص) (۱) بې لحاظه ، (۲) په بل طرف ، پـه داسې طرف چې خلق نۀ پرې لګي ، د لارې نه یو اړخ ته ـ

ـــــ **مخې** :- (ص) بې مثاله ، چې ثاني نۀ لري ، چې د مقابلې ئې څوک نۀ وي ـ

ـــــ **مرشده** :- (ص) و ـــ بې پیره ـ

ـــــ **مرګه** :- (ص) (۱) بغېـر د مـرګ نـه ، بې مرینې ، بې وژلـو (۲) هغـه څوک چې مرګ ئې نۀ وي ـ

ـــــ **مروته** :- (ص) سپین سترګے ، بې لحاظه ، بې مخه ـ

ـــــ **مروتي** :- (اس) سپین سترګ توب ، بې لحاظي ، بې مخي ـ

ـــــ **مړانې** :- (ص) چې مړانه نۀ کوي ـ ډارن ، یرېدُونکے ـ

ـــــ **مزې** :- (ص) (۱) بې خونده ، (۲) پرېوتے ، ناکاره ـ

ـــــ **مطلبه** :- (ص) (۱) چې مطلب نـۀ لـري ، بې معنـي (۲) بې غرضـه بې طمعې ـ

زر افشان لـــکه افتاب شه بې مطلبه

شیدا سوال ته د سائل انتظار مه کړه

(۳) فضول ، عبث ـ

ـــــ **معنـي** :- (ص) (۱) چـې معنـې نـۀ لـري ، بـې مطلبـه (۲) بـې قیمتـه ـ (۳) عبث ، خوشې ، بې فائدې ـ

چې نـــۀ پت نــــۀ کمیـــنې لرې نۀ حلم

څوک دې څۀ کا بې معنی د خاورو رخت

(علیخان)

ـــــ **مغزه** :- (ص) (۱) چې مغز نۀ لري ، بې تخمه ، بې بیجه ـ

له بې مغزه هېڅ غله نۀ زرغونېږي

څـــوک دې تـــخم غله نۀ کا مقشر (مرزا خان انصاري)

(۲) کم عقل ، ناپوهه ، (۳) جګر مار ، جګړي ، تېز طبیعته ، جګړاؤ .
ـــــ **مقدار** :- (ص) بې وزنه ، بې توله و ډېر زیات ، بې اندازې .
سلامونه دې زما وې صد هزار
بې عدده بې مقدار ه بې شمار (ملا نعمت الله)
ـــــ **مکان یا مکانه** :- (ص) بې کوره ، بې ځایه ، بې ټکانې .
نـهٔ ئې مثل نهٔ مثال نهٔ ئې مکان شته
دے بې مثله بې مثاله بې مکان دے (رحمان)
ـــــ **منته** :- (ص) بې احسانه ، بې ښېګړې .
محبت کړم د خوبانو اوښ په لتـه
چې هر چا د ظلم بار وړم بې منته (حمید)
ـــــ **مواره** :- (ص) (۱) بې مهاره ، چې مهار نهٔ وي په کښې (۲) په خپل سر ، په خپل مخ ، ازاد .
ـــــ **موجبه**:- (ص) بې وجهې ،بې سببه، اوچ په اوچه ، هېڅ بې هېڅه .
بې موجبه ئې ستم راباندې وکړ
جــادګـــرو ساحرانو الغیاث (خواجه محمد بنګش)
ـــــ **مودې** :- (ص) (۱) بې نیتېې ، د وخت نه وړاندې
په ځوانۍ د عشق غمونو حمید زوړ کړو
بې مودې ئې ږیره سپینه شوه ملا غبرګه (حمید)
(۲) بې موسمه بې وختـه کرلے شوے فصـل (۳) د تـاکلي مقصد وخت نـه وړاندې یا روستو (۴) د مقرر وخت نه مخکښې د ماشوم پېدا کېدنه
ـــــ **مورګي** :- (ص) و ــــ بې ځنډې .
ـــــ **موره** :- (ص ) (۱) چې مور ئې نهٔ وي ، یتیم (۲) بې خونده ، لـولا ، بې ښې توښې
ـــــ **موره بې پلاره** :- (اص ) (۱) چې مور پلار ئې نـهٔ وي (۲) پـه خپـل مـخ ، په خپل سر ، ازاد .
ـــــ **موسمه** :- (ص) چې موسم ئې نـهٔ وي . د مقررې نېټې نـه وړانـدې یـا روستو .
ـــــ **موقعې** :- (ص) و ــــ بې محله .
ـــــ **مُهاره** :- (ص) و ــــ بې مُواره .
ـــــ **مهره** :- (ص) بې رحمه ، نامهربان ، بې رُخه .
ـــــ **مهري** :- (اس ) بې رحمي ، بې رُخي .
بې مهـــري بــه د یار څهٔ راسره وکا
چې له مهره ئې جنجال شو راته پېش (حمید)
ـــــ **ناڅوپه** :- (ب ، خ ) ص . اچانک ، ناڅاپه ، دنیامه .
ـــــ **ناموسه** :- (ص) بې ننګه ، بې عزته ، سپک .
ـــــ **ناموسي** :- (ص) بې ننګي ، بې عزتي ، سپکوالے .
ـــــ **نامه** :- (ص) (۱) چې نوم نـهٔ لـري ، هغـه څوک چې مشـهور نـهٔ وي . (۲) ګمنام ، ورک
تـــــر هغهٔ پورې بګرامه
په جهان مه شې بې نامه (کاظم خان)
ـــــ **نرخه** :- (ص)(۱) د نرخ نه بهر (۲) بې حسابه ، بې توله ،
چې تل تل په قهقهه خاندې زهیرېږم
څــــهٔ بــــې ترخه تولوې د خوږو تله (خوشحال)
(۳) بې دستوره ، بې طریقې .
ـــــ **نشان یا بې نشانه** :- (ص) چې نشان نهٔ لري ، بې نخښې .
پـــوشیده د هسې شان وي
چې سوفار ئې بې نشان وي (کاظم خان)

ـــــ **نصیب یا نصیبه** :- (ص) بې قسمته ، بې برخې .
ستا د تېغ په اوبو حلق د چا لوند نهٔ شي
بـــې نصـــــیبه تـل ځي تږې له دریابه (علیخان)
ـــــ **نظامه** :-(ص) بې طریقې، بې قاعدې ، بې لارې ، بې دستوره بې نظمه ، بې بندوبسه .
د پښتــو ژبــه تمـامه
وه بې نظمه بې نظامه (کاظم خان)
ـــــ **نظمه** :- (ص) و ــــ بې نظامه .
ـــــ **نظیر یا نظیره** :- (ص) بې مثاله ، بې مقابلې .
ـــــ **نفسه** :- (ص) (۱) بې هوا ، هوسه ، (۲) عاجز طبیعته (۳) بې سا .
پس له مرګه وې سینه د سینه چـاکو
بـــې نفسه د جرس غوندې فغان کا (کاظم خان)
ـــــ **نفسي** :- (اس ) عاجزي .
ـــــ **نقاب یا نقابه** :- (ص) بې پردې ، بربنډ مخ ، بې بورقې .
که لیدلې دے عاشاقو په پرده کښې
مـــا دے مـــخ د یار لیدلے بې نقابه (عبدالعظیم بابا)
ـــــ **نقصانه**:-(ص) (۱) بې تاوانه،بې خسارې (۲) خچه،صحیح سلامت .
ـــــ **نم یا نمه** :- (ص) (۱) بې نوه ، اوچ
لکه ابر په هېڅ وخت نهٔ شوې بې نمه
هر ساعت زما په سترګو کښې ژړا ده (کاظم خان)
(۲) بې حیا .
ـــــ **نماز یا نمازي** :- (ص) (۱) بېلماز ، چې نمونځ نهٔ کوي (۲) ناپاک (۳) بد اخلاقه
خدا ے له هسې زاوزاده امان راکړه
چې بې دین بې دیانت شي بې نماز (رحمان)
(۴) بېلمازه ، ناپاکې جامې .
ـــــ **نمـازي** :- (ص) (۱) بېلمـازي ، ناپـاکي ، نمـونځ اودس نـهٔ کونـه .
(۲) اخلاقي کمزوري ، (۳) بېلمازي ، د زنانوؤ جامې کېدل .
ـــــ **نمبره** :- (ص) (۱) چې نمبر پرې نهٔ وي لګېدلے ، (۲) بې واره
ـــــ **نمکه** :- (ص) و ــــ بې مالګې .
لـــکه بـــې نمکه ناوې
چې په سر کاندې ځادر (رحمان)
ـــــ **نمکي** :- (اس ) (۱) بې مالګې توب (۲) بې رونقي ، سخاتوب .
ـــــ **ننګ یا ننګه** :- (ص) بې ناموسه ، بې غېرته .
وبې ننګه ته د ننګ خبرې مه کړه
یـــا ځان وګنه په خپلو وینو رنګ (رحمان)
ـــــ **ننګي** :- (اس ) بې ناموسي ، بې غېرتي ، دله توب .
پښتـانهٔ چې بې ننګي کا څوک ئې څهٔ کا
ګـــورستان لـــره به درومو بې ارمانه (خوشحال)
ـــــ **نوا** :-(ص) (۱) محروم،بې برخې
خوار غریب او بې نوا وائے
خو وطنه ستا په خوا وائے (خواجه رزق الله)
(۲) کم،لاتدې،کمزورے،سپک .
ـــــ **نوائي** :- (اس ) (۱) محرومي ، (۲) کمزوري ، سپکتیا .
تر ناموسه ورته ښهٔ شي
بـــې ننـــګي بې نوائي (رحمان)
ـــــ **نوره** :- (ص) (۱) چې نُور نهٔ لري ، چې رڼا نهٔ کوي .

تر قامت پورې دې سروه ده سرکوزې
تر رخسار پورې دې شمع ده بې نوره
(۲) بد رنګ بد شکله (۳) چې د سترګو نور ئې نۀ وي- ړوند.
**ـــــ نوره بې نمکه** :- (اص) سخا.
**ـــــ نومه** :- (ص) چې نوم نۀ لري- نوم ورکے، ګمنام.
**ـــــ نوه** :- (ص) (۱) بې نمه، اوچ (۲) بې شرم، بې حیا.
**ـــــ نیاز یا نیازه** :- (ص) (۱) بې پروا، چې موتـازه نۀ وي- (۲) د الله پـاک یو صفاتي نوم-
**ـــــ نیازي** :- (اس) بې پروائي-
یو د تر کو بې نیازي بل عاشقي ده
په پرهر باندې مې بل پرهر پیدا شو (رحمان)
**ـــــ وار یا واره** :- (ص) (۱) چې وار ئې نۀ وي، بې نمبره
اوس ګردش بویه په کام د شیدا چرخه
هــر ګــز نۀ ګرځي اسیاه د چا بې واره
(۲) وارخطا (۳) ډېر زیات، پرله پسې (ګزارونه).
**ـــــ واره بې واره** :(اص) (۱) وارخطا، پرېشان، ګډ وډ (۲) ډېر زیات وهل
**ـــــ واسطې** :- (ص) بې وسیلې، بغېر د چا د سفارشه، نېغ په نېغه.
**ـــــ واکه** :- (ص) بې اختیاره، بې قابو-
ما ویل چې مینه نۀ کړم
زړۀ بـــې واره شها یوړو (احمد شاه ابدالي)
**ـــــ واکي** :- (اس) بې اختیاري، بې وسي-
**ـــــ وته** :- (ص)(۱) خالص، چې کوټ په کښې نۀ وي، سوچه. (۲) روغ، تندرست، جوړ، بې خلبته.
که شربت د نیلوفر راشي په جوئي کښې
روغ بـــه کــله شي نرګس د باغ بې وته (کاظم خان)
(۳) ببخي، سګټې.
**ـــــ وجهې** :- (ص) بې سببه، هسې-
ځـــوک بـې وجهې چاته توره تېره اخلي
خپل عمل دے چې دنیا ئې کړه هلاکه (رحمان)
**ـــــ وخته** :- (ص) بـې وختـه، چې پـه وخت نۀ وي. د مقرره وخت نـه وړاندې یا روستو، بې ټېمه-
ښۀ رنګ بدرنګ کا چې پرې الوزي بې وخته
زړۀ د خــزان ګـــوره پـــه بهـار نۀ زهېرېږي (فاضل)
**ـــــ وخته ګرځېدل** :- مص تر. (۱) بې طبعې ګرځېدل (۲) بـې ټېمـه شوربدل
**ـــــ وړه** :- (ص) نامناسب.
**ـــــ وزرو** :- (ص) چې وزر نۀ لري- بې متو.
**ـــــ وزرو مارغۀ** :- (ص) (۱) هغه مارغۀ چې وزر نۀ لري (۲) انسان.
**ـــــ وزله یا بې وزلې** :- (ص) غریب، خوار، ببکس، بې اسرې، عاجز، موتاز.
**ـــــ وزلي** :- (اس) غریبي، خواري، ببکسي، موتازي.
**ـــــ وزلي توب** :- (اس) غریبي، خواري، ببکسي.
**ـــــ وزنه** :- (ص) (۱) چې وزن نۀ لري، سپک، هلکے (۲) بې تولـه، بې سبلابه، بې ځپې (۳) بې حُکه، اړتاوکه.
**ـــــ وسواسه** :- (ص) بې خطرې، خاطر جمع، په ارام، بې وسوسې-
شپـــږم دوي چـــې رابښکاره شي ورتـــه پاځه
چې دوي ناست نۀ وي کښېنني بې وسواسه (مولو سلام)

**ـــــ وسوسې** :- (ص) و ـــــ بې وسواسه.
**ـــــ وسه** :- (ص) چې وس نۀ لري، مجبور، کمزورے، لاچاره.
**ـــــ وسي** :- (اس) مجبوري، لاچاري، کمزوري.
**ـــــ وفا** :- (ص) بې پته، بې لوظه، بې قوله.
وینو مه شه په دوستۍ د دنیا خلق
دا بـــې شرم بـــې وفا بې حیا خلق (حمید)
**ـــــ وفائي** :- (اس) بې پتي، بې لوظي، بې قولي.
**ـــــ وقته** :- (ص) و ـــــ بې وخته.
د خمار په علامت ئې سترګې سرې دي
کــه چـا بې وقته بېداره کړه له خوابه (خوشحال)
**ـــــ وقره** :- (ص) (۱) سپک، بې اهمیته (۲) چې عزت نۀ لري.
**ـــــ وقوف یا وقوفه** :- (ص) کم عقل، ناپوهه.
که د سلو زویو پلار شي ځوک ئې ځۀ کا
بې وقوفه زوے د پلار ځۀ په کار نۀ دے (رحمان)
**ـــــ وقوفي** :- (اس) کم عقلي، ناپوهي.
**ـــــ وله** :- (ص)(۱) بې خنده، بې نقصانه (۲) د یـوې ژبې خاوند، بې مکره، بې حیلې (۳) اومړے، هغه مزے چې تاؤ پکښې نۀ وي.
**ـــــ وُنې** :- (ص) (۱) چې ونې پکښې نۀ وي، شاړ (۲) چیت، ټیټ، چې قدقامت ئې لنډ وي- لنډے، مندرے.
**ـــــ ویرې** :- (ص) (۱) بې یرې، بغېر د یرې نـه، بې ترهې، بې خطر (۲) زړۀ ور، باور، نر.
**ـــــ ویسا** :- (ص) و ـــــ بې اتباره.
**ـــــ همته** :- (ص) و ـــــ بې حوصلې.
چې د تا تر لاندې نفس شي په تا باندې
هومـــره ننګ وشرم نۀ کړې بې همته (حمید)
**ـــــ همتي** :- (ص) لنډ پاري، بې حوصلګي.
**ـــــ هنر یا بې هنره** :- (ص) بې کسبه، چې هنر ئې نۀ وي زده.
دم د بخت مې ئې په زلفو اثر نۀ کا
بـــې هنره یم چې مار په هنر نیسم (علیخان)
**ـــــ هنري** :- (اس) بې کسبي.
**ـــــ هوشه** :- چې په هوش کښې نۀ وي- بې سُوده، بې خوده.
**ـــــ هوشي** :- (اس) بې خودي، بې سودي.
کــل مایه ورکړه د هوش په بې هوشۍ
په غوغا دې ولې ورک کړه خواب خط (کاظم خان)
**ـــــ یرې** :- و ـــــ بې ویرې.
**بیا** :- (بْ + یا) [پ، اس] پس ته، دوباره، بل وار، دویم ځل، پس له دې.
هـــر چـــې ما په نصیحت له تا جاریاسي
بیا دوي درومي ستا په لوري له ما وړاندې (رحمان)
**بیابان** :- (بَ + یا + با + نْ) [فا، اس، مذ، وا، ج: بیابانونـه] ببـوان، صحرا، ربګستان، شاړه، خشکه، ببدیا، مېره، ویرانه، هغه ویجاړ مېدان چې پکښې تر لرې لرې پورې اوبۀ نۀ وي.
لکه ځوک پـه خپل ایوان کښې
خـــوښ یم زۀ پـــه بیابان کښې (کاظم خان)
**بیابیا** :- (بْ + یا +بْ + یا) [د تکرار کلمه] ډېر ځله، هر وخت، پرلـه پسې، دوبا ره دوباره، په تاکید سره، مکرر.
یو ګفتار سرې له بس کاندې رحمانه
ځۀ پـــه هر ساعت پوښتنه کړې بیابیا

**بیاتي** :- (بْ + یا + تِيْ) [پ ، اس ، مؤ ،وا ، ج : بیاتیـ ، بیاتي ګانې] ببتي ، قینچۍ۔

مـــرتبه د شهادت به مې نصیب شي
که مجروح مې د مژګانو په بیاتي کړې (عبدالعظیم)

**بیاج** :- (ب + یا +جْ) [ه ، اس ، مذ] (۱) سود ، ګټه ، (۲) خوراک دپاره په بیعه غله اخستل ۔

**ـ خور** :- (اص) (۱) سود خور ، د سود کاروبار کوُونکے ، (۲)ناجائز مال خوړونکے۔

**بیاج ګر** :- (بیاج + ګَ + رْ) [پ ، تر (سو) اس ، فا ع ، مذ] هغه سړے چې خپله مزکه نۀ لري او د خوراک دپاره غله په بیعه اخلي۔

**بیارته** :- (بْ + یا + رْ + تَه) [پ ، اس] (۱) بېرته ، دوباره ، دوېم ځل بل وار ، واپس

پــرونے ساعت به رانۀ شي په بیارته
تللے یار چې په ما راغلے پیا پرون شه (ابوالقاسم)

(۲) وار ، خلاص ، لرې۔

**بیاس** :- (ب + یا + سْ) [ه ، اس ، معر ، مذ] د پنجاب په پنځو سیندونو کښې د یو نوم۔

**بیاسته** :- (بْ + یا + س + تَـه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بیاستې] ویاسته ، یو سته ، غټ پړے ، مضبوطه رسۍ۔

**ـــــ اېستل** :- (صوابي) اص۔بیاسته غښتل۔

**ـــــ غښتل** :- (اص) پړے مزے کول ، بیاسته ماتول ، غټه رسۍ جوړول ، بیاسته ایستل۔

**ـــــ ماتول** :- (اص) و ـــــ بیاسته غښتل۔

**بیـاض** :- (بَ + یـا + ضْ) [ع ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بیاضـونه] لُغ : سـپین والے ، صفا والے ، اص : تشه کاپي یا کتاب ګوټے ، چې شاعران ئې د شعرونو لیکلو دپاره ساتي ، دشعرونو کتاب ، دیوان۔

دا تازه تازه مضمون چې په بیاض کښم
خبــر نـــۀ یــم چــې لـه کومه رانزول کا (خوشحال)

**بیاګرافي**:- (بْ + یا + ګْ + را + فِي) [انګ ، اس ، مؤ] سوانح عمري

**بیاله** :- (بْ + یا + لَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بیالې] ویاله ، وله ، وند۔

**بیاموندل** :- (بْ + یا + مُو + نْ + دَ + لْ) [پ ، مص مت] موندل ، په لاس راتلل

**بیاموندنـه** :- (بْ + یـا + مُوْ + نْ + دَ + نـه) [پ ، حمص] موندنـه ، پـه لاس راتلنه۔

**بیان** :- (بَ + یا + نْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : بیانونه ، بیانینه] (۱) وینا ، وعظ ، تقریر ، خبرې۔

سخندان بـــه ئې په کومه خولۀ بیان کا
ستا د خولې تشبیه راوړل موشګافي ده (عبدالقادر)

(۲) ګواهي ، شهادت (۳) مقوله ، قول (۴) علم بیان ، یو علم چې په کښې د تشبیهٔ استعارې او کنا ئې په مدد د لفظونو معنو یا خپلو کښې ترون سره پیدا کولے شي۔

**ـــــ اخستل** :- (اص) په مقدمه کښې د مدعي ، مدعالیه یا ګواه نه بیان اوربدل

**ـــــ جوړول** :- (اص) د دروغو بیان تیارول۔

**ـــــ بدلول** :- (اص) پـه مقدمـه کښې د وړاندې ورکړې شـوي بیـان نـه منکربدل

**ـــــ را اخستل** :- (اص) (۱) څۀ واقعه بیانول (۲) خبره اُوږدول (۳) ګواهي شروع کول ، بیان ورکول۔

**ـــــ شروع کول** :- (اص) و ـــــ بیان را اخستل۔

**ـــــ کول** :- (اص) بیانول ، تېرول ، وئیل۔

**ـــــ کېدل** :- (اص) بیانېدل ، تېرېدل ، وئیل کېدل۔

**ـــــ لیکل** :- (اص) د چا بیان قلمبند کول۔

**ـــــ ورکول** :- (اص) و ـــــ بیان را اخستل۔

**بیان دعوی** :- (بَیان + دَ + عْ + وا) [فا تر ، اس ، مذ] د دعوې ثبوت ، صورت حال ، د واقعې حقیقت۔

**بیاڼ** :- (بْ + یا + ڼ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بیاڼان (مؤ ، وا : بیاڼه ، ج : بیاڼې)] و ـــــ بهاڼ۔

**بیاڼ** :- (ب + یا + ڼ) [پ اس، مذ] د کبانو د جال پړے۔

**بیانول** :- (بَ + یا + نَ+ وَ + لْ) [پ ، مص مت] بیـان کـول ، وئیـل ، خبره شروع کول ، تېرول ، حالات ښئیل۔

**بیانونه** :- (بَ + یـا + نَ + وَ + نَـه) [پ ، حمص] وینـا ، خبـره شـروع کونـه قیصه تېرونه

**بیانوُونکے** :- (بَ + یـا + نَ + وُوْ + نْ + کَے)[پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: بیانوُونکي] ویونکے ، بیان کوُونکے ، خبر تېروُونکے۔

**بیانـه** :- (بْ + یـا + نَـه) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بیـانې] بیعانـه ، ټېـې، سائي ، هغه لږ رقم چې د سودا پخولو دپاره ورکولے کېږي۔

**بیانېـدل** :- (بَ + یـا + نـې + دَ + لْ) [پ ، مـص لا] وئیـل کېـدل ، خبـره تېرېدل ، قصه کېدل ، حالات ښئیلے کېدل۔

**بیانېدنه** :- (بَ + یا+ نې + دَ + نه) [پ ، حمص] وئیـل کېدنـه ، تېرېدنـه قصه کېدنه ، بیانېدۀ۔

**بیانېـدُونکے** :- (بَ + یـا + نـې + دُو + نْ + کَـے) [پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: بیانېـدونکي] وئیلے کېـدونکے ، حالات څرګندېـدونکے ، تفصیـل ښئیلے کېدُونکے۔

**بیانېدۀ** :- (بَ + یا + نې + دۀ) [پ ، حمص] و ـــــ بیانېدنه۔

**بیاهم** :- (بْ + یا + هَ + مْ) [پ ، کلمه] سره ددې ، ددې نه سېوا ، بـاوجود ددې۔

**بـي اے** :- (بيـْ + اے) [انـګ ، اس ، مـؤ] د بیچلـر اف ارټـس مخفـف څوارلسم جماعت ، د څوارلسم پاس ډګرې یا سند۔

**بي اے ایل بي** :- (بي + اے + اي + لْ + اي + لْ + بِيْ) [انګ ، اس ، مؤ] د بیچلر آف لاء مخفف ، د قانون ډګرې۔

**بي ایس سي** :- (بِيْ + اِیْس + سِيْ) [انګ ، اس ، مؤ] د بیچلر اف سائنس مخفـف ، د سـائنس څوارلسـم جماعـت ، د سـائنس د څورالسـم جماعت ډګرې۔

**بـې بـاقول** :- (بـې + بـا + قَ + وَ + لْ) [پ ، مـص ، مـت] حسـاب کتـاب خلاصول ، پور پرې کول۔

**بې باقونه** :- (بې + با + قَ + وْ + نَه) [پ ، حمص] حساب کتاب خلاصـونه ، پور پرې کونه۔

**بې باقوُونکے** :- (بې + با + قَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا، ج: بې باقوُونکي] حساب کتاب خلاصوُونکے ، پور پرې کوُونکے۔

**بـې باقبدنـه** :- (بـې + بـا + قـې + دْ + نَـه) [پ ، حمـص] حسـاب کتـاب خلاصبدنه، پور پرې کېدنه ، بې باقبدۀ۔

**بې باقبدُونکے** :- (بې + با+ قې + دُو + نْ + کَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : بې باقبدُونکي] حساب کتاب خلاصبدونکے ، پور پرې کېدونکے۔

**بې باقېدۀ** :- (بې + با + قې + دۀ) [ پ ، حمص ج و ـــ بې باقېدنه .

**بېبدۍ** :- (بې + بُ + دۍ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] پېش قوزه ، چاړۀ ، چوړکۍ ، چړوکۍ .

**بېبې** :- (بې + بې) [ پ ، اس ، مؤ ، وا] ابۍ ، ادې ، مورې ، مور او مشرې ښځې ته د غږ لوظ .

**بې بې** :- (بې + بې) [ اف ، پ (قاموس) اس ، ندا ] د ماشومانو په ژبه کاغذ ، کتاب یا سبق .

**بي بي** :- (بيْ + بيْ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بيبياني ] (۱) بېگم ، مېرمن ، (۲) د مشرې ښځې د عزت او درناوي نوم .

**بي بي اُوښه** :- (بيْ + بيْ + اُو + شه یا خَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ وا ، ج : بي بي اُوښې ] غټ ملخ ، هغه ملخ چې د اُوښ په شان ښکاري بُوډۍ .

**بي بي بانگې ملو** :- (بيْ + بيْ + با + نْ + گې + مَ + لو) [ پ (سو) اس ، مؤ ] د ماشومانو د قصو یو کردار .

**بي بي چمبه** :- (بيْ + بيْ + چَ + مْ + بَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] مړوند ی ، یو قسم واښۀ چې د انسان د پنجې په شان وي .

**بي بي حوا** :- (بي + بي + حَ +وا) [ پ ، اس ،مؤ] د بنیادمو مور ، د ادم علیه السلام تېر .

**بي بي سیده** :- (بيْ + بيْ + سَي + دَه) [ س ، اس ، مؤ] په اشنغر کښې د عمرزو کلي سره نژدې یو زیارت .

**بي بي وېشتان** :- (بيْ + بيْ + وې = شْ + تا + نْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو قسم شینکے ، سُنبل .

**بې پار** :- (بې + پا + رْ) [ پ ، ه : بیوپار ، اس ، مذ ، وا ، ج : بېپارونه] وپار ، لېن دېن ، تجارت ، سوداگري .

ـــــ **چلول** :- (اص) وپار چلول ، تجارت او سوداگري کول ، لېن دېن کول ، بې پار کول .

ـــــ **کول** :- (اص) و ـــــ بې پار چلول .

ـــــ **کېدل** :- (اص) وپار کېدل ، تجارت او سوداگي کېدل ، لېن دېن کېدل .

**بېپاري** :- (بې +پا + رِيْ) [ پ ، ه : بیوپاري ، اس ، مذ ،وا ، ج : بېپاران ] وپاري ، سوداگر ، تاجر .

**بېپل** :- (بې + پَ + لْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بېپلان] د کدویه شان بُوټے چې د پټخي یا پوست نه ئې ډبلي جوړولے شي .

**بېت** :- (بې + تْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بېتونه یا بېتان (مؤ ، وا : بېته ، ج : بېتې) ] مُخبر ، جاسوس ، مُکبېر ، بېتې .

**بېت کول** :- (اف) مص مت ـ جاسوسي کول ، مُخبري کول .

**بېت** :- (بَې + تْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج :بېتونه ] شعر ، مصرع .

**بېت بازي** :- (بېت + با + زِيْ) [ پ ، اس ، مؤ] د شعرونو مقابله .

**بېت** :- (بې + تْ) [ ع ، اس ، مذ ،وا] کور ، مکان ، ځاے .

**بېت الحرام** :- (بې + تُ + لْ + حَ + را+ مْ) [ ع ، اس ، معر ، مذ] (۱)خانه کعبه ، (۲) دمکې معظمې هغه حدونه چې هلته په رسېدو ځینې جائز او روا کارونه په بنیادم حرام شي ـ هلته ښکار او گرفتاري حرام دي .

**بېت الخلا** :- (بَې + تُ + لْ + خَ + لا) [ ع ، اس ، مؤ] تېې ، د اودس ماتي ځائې ، پاخانه

**بېت المال** :- (بَې + تُ + لْ + ما + لْ) [ ع ، اس ، مذ] د اسلامي حکومت سرکاري خزانه ، د ملک حاصلات په بېت المال کښې جمع کېږي او حاجتمندو خلقو ته مالي مدد ترې نه ورکولے شي .

**بېت المقدس** :- (بَې + تُ + لْ + مُ + قَ + دْ + سْ) [ ع ، اس ، مذ ] (۱) پاک کور ، اولنۍ قبله ، مسجداقصیٰ چې په فلسطین کښې دے (۲) په فلسطین کښې د یو ښار نوم .

**بېت الله** :- (بَې + تُ + لْ + لا + هْ) [ ع، اس ، مذ ] (۱) د خداے تعالیٰ کور (۲) خانه کعبه .

**بيتر** :- (بيْ + تَ+ رْ) [ پ ، اس ، مذ] (۱) کېر ، د کهې ، دروو ، خنجري یا نري جوارو د ټانټو د بوالونه چې د کندُو یا ایکوني وغېره د لېو نه اول اودرولے شي (۲) د کور د چار دیوارۍ دپاره جوړ کېږُونه .

**بېتله** :- (بې + تْ + لَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د زرکانو او د نورو مرغانو د نیولو د لرگي کوړکۍ بېتلۍ .

**بېتلۍ** :- (بې + تْ + لَ + يَې) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـ بېتله .

**بېته** :- (بَې + تَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بېتې ] مردکه ، مردکۍ ، هنډ ، گینۍ ، غُنډاره .

**بېتي** :-(بَې + تِيْ) [ اف : پ (قاموس) ه : بهیدی ، اس ، مذ ، وا ، ج: بېتان (مؤ ، وا: بېتۍ ، ج : بېتانې) ] و ـــــ بېت .

**بېتي** :-(بَې + تِيْ) [ پ ، (ب، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : بېتۍ ] و ـ بیاتي .

**بېټې** :- (بې + ټې) [ پ (سو) اس ، ص ، مذ] پچوچي ، د بل راز پسې گرځېدونکے ، جاسوس .

**بېټ** :- (بَې+ ټْ) [ انگ ، اس، مذ ، وا] د کرکټ بله .

**بِیټ** :- (بيْ + ټْ) [ انگ ، اس ، مذ ،وا] د پولیس یا د ډاک د عملې د چکر یا گشت علاقه .

**بِیټ** :- (بيْ + ټْ) [ پ ، اس ، معر ، مذ] د پښتنو د بېټني قبیلې مشر نیکۀ ـ دوي ته بېټ بابا یا بیټن هم وائي ـ په زوړ پښتو ادب کښې د دوي '' لویه خدایه ! لویه خدایه '' دا دعا ډېره مشهوره ده .

**بېټ** :- (بَې + ټْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] (۱) اوچ بیابان ، اوچه مېره (۲) د بېډو ، شپشتو یا اډوکو یوه لوبه .

**بېټ** :- (بَې + ټْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ملاتړ ، مدد ، پُشتي ، مرسته

ـــــ **ورکول** :- (اص) ملاتړ کول ، مرسته کول ، مضبوطول ، د چا د مدد دپاره اُودرېدل .

**بېټ** :- (بَې + ټْ) [ پ (ب ، خ) ص ناست ، چو ، خې ، د اوښ ناستې ته وئي .

ـــــ **لگول** :- (سو) اص ـ کښېناستل ، ډډه لگول ، ټېک لگول .

**بېټک** :- (بَې + ټَ + کْ) [ پ ، ه : بیٹھک ، اس ، مذ ، وا ، ج : بېټکونه ، بېټکینه ] د کور سره جُخت د مېلمنو ځاے ـ د کله راسې چې بېټکونه زیات شوي دي ـ نو په پښتونخوا کښې د حجرو او چوکونو هغه خوند نۀ دے پاتې شوے .

**بېټکے** :- (بَې + ټَ + کَے) [ پ ، اس ، تصغیر ، مذ ،وا ، ج : بېټکي] ورکوټے بېټک

**بیټل** :- (بيْ + ټَ + لْ) [ انگ ، اص ] د انگلستان ځینې زلمو د سر او ږیرې وېښتۀ ډېر لوے کړل او د موسیقۍ یو نوے فن ئې اجراء کړو ـ ددې ټولې یو غړي ته بیټل وئیلے شي .

**بېټن** :- (بَې + ټَ + نْ) [ پ ، اس ، معر ، مذ ] (۱) بېټ نیکۀ (۲) سردار ، مشر (کوهستان) .

**بېټنے** :- (بَې + ټَ + نَے) [ پ ،اس ، مذ ،وا ، ج : بېټني ، (مؤ ، وا ، ج: بېټنۍ) ] د بېټني قوم غړے ، د بېټ نیکۀ د اولاد یو کس .

**بېتول** :- (بَې + تَ + وَ + لْ) [ پ ، (ب،خ) مص مت ] اوبِښ کنبښنول چوکول ، خې کول.

**بېتونـه** :- (بَـې + تِ + وْ + نَـه) [ پ (ب ، خ) حمـص ] اُوبښ کنبـښنونه ، چوکونه ، خې کونه.

**بېتوُونکې** :- (بَې+تِ+وُوْ + نْ + کَې) [ پ (ب ، خ) اس ، فا ، ع ، مذ ، وا ، ج : بېتوُونکي ] اُوبښ کنبښنوُونکې ،چوکوُونکې ، خې کوُونکې.

**بېته** :- (بَې + تَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] خنجاره ، کُنجاره.

**بېته** :- (بَې + تَـه) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بېتې ] (۱) د غـرۀ لمن ، غُنډۍ ، (۲) د ګډو د رمې د ارام او د اوسولو ځـای.

**بېته** :- (بَې + تِه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] د تېلو لوښې یا ډبه.

**بېتۍ** :- (بَې+تَ+یۍ) [ پ ، (سو) اس ، مؤ ] د سرو زرو امېل کنبې مرۍ.

**بېتې بیابان** :- (بَې + تِيْ + بَ + یا + با + نْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ] بتې بیبان ، خُشکه مېره ، سپین ډګر ، داسې اوچه مېره چې د اوبو درک په کنبې نۀ لګي ، سور ډاګ ، سوراړه ، چول بیابان.

**کور بېتې بیابان کېدل** :- (اف) ببخې بربادېدل ، سُکټ تباه کېدل د کور نه د لالاملا جومات جوړېدل.

**بېتېدل** :- (بَې + تِې + دْ + لْ) [ پ (ب ، خ) مص لا ] د اوبښ کنبښناستل ، چو کېدل ، خې کېدل.

**بېتېدنه** :- (بَې + تِې + دْ + نَه) [ پ (ب ، خ) حمص ] د اوبښ کنبښناستنه ، چو کېدنه ، خې کېدنه.

**بېتېـدُونکې** :- (بـې + تِـې + دُوْ + نْ + کَـې) [ پ (ب ، خ) فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بېتېدُونکي ] کنبښناستونکې ، چوکېدونکې ، خې کېدونکې.

**بېتۍ** :- (بَې + تِيْ + یَې) [ پ (بنو) اس ، مؤ ، ج ] غوبښې ، بوتۍ ، تکې.

**بیج** :- (بِيْ + جَ) [ پ (ب،خ ، ګن) ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : بیجونه ] (۱) تخم ، تېمنه ، (۲) اصل ، نسل (۳) نطفه ، تېمن.

**ـــــ ایستل** :- (اص) (۱) تخم ایسـتل (۲) بـېخ بنیادایسـتل،تباه کـول ، بربادول

**ـــــ ښخول** :- (اص) (۱) تخم کرل (۲) څوک پـه یـو ځـای کنبې لګـول ، چاته موقع پیدا کول.

**ـــــ کرل** :- (اص) تخم کرل.

**بېچ** :- (بَـې+چْ) [ انـګ ،اس ، مـذ ، وا ، ج: بېچونـه ، بېچینـه ] (۱) بِلـه ، نشان ، نخښنه (۲) د بېچ غلط نوم ، ډله ، ټولې.

**بیجاغلۍ** :- (بِـيْ + جا + غْ+ لَـۍ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ ] یـو قسـم د زرو سکه.

**بـېجن** :- (بـيْ + جَ + نْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مـذ ، (مـؤ ، وا : بېجنه،ج : بېجنې) ] سپږن ، د سپږو نه ډک ، شپږن ، سپږو ډک.

**بیجن** :- (بِيْ + جَ + نْ) [ پ (ګن) ص ، مذ ، (مؤ ، وا : بیجنه ، ج : بیجنې) ] د تخم یاتیمنې واله څیز ، هغه څیز چې بیج لري ،تخمي.

**بېجور** :- (بَې + جُوْ + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بېجوران ] د لمنځې یو قسم ونـه چې دروازې او داسې نور څیزونـه ترې جوړولې شي.

**بیجه**:- (بِيْ + جَه) چ اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ ،وا ، ج : بیجې ] سپېره (د ماشومانو په ژبه).

**بېځانتوب** :- (بَې + دْزا + نْ + تو + بْ) [ پ ، اس ] (۱) د ځان نـه ناخبري ، بېځانې (۲) کمزوري ، (۳) بېهوشي.

**بېځانوکې** :- (بَې + دْزا + نُوْ + کَې) [ اف : پ (قـاموس) ص ، مذ ، وا ، ج : بېځانوکي (مؤ ، وا : بېځانوکې) ] کمزورې ، مانده، ډنګر.

**بېځانه** :- (بَې + دْزا + نه) [ پ ، ص ] (۱) د ځان نه بې خبر (۲) کمزورې مانده ، (۳) بېهوشه.

**بېځاني** :- (بَې + دْزا + ني) [ پ ، اس ج و ـــــ بېځانتوب.

**بېځائې توب** :- (بَې + دْزائې + تو + ب) [ پ ، حمص ] بېځائي ، بې کوري ، د استوګنې د ځای ورکېدنه.

**بېځایه** :- (بَې + دْزا + یه) [ پ ، ص ج (۱) بې کوره ، بې مسکنه . (۲) بې مـوقعې ، عبـث ، فضـوله ، خوشـې (۳) بـې ګـودره (۴) د ځـای نـه خوځېدلې ، وتلې.

**ـــــ کول** :- (اص) (۱)بې کوره کول ، دا ځـای نه لـرې کول (۲) د چا اډوکې بې جوړه کول یا ایستل.

**ـــــ کېدل** :- (اص) (۱) بې کوره کېدل (۲) د اډوکې بې جوړه کېدل یا وتل.

**ـــــ ګډېدل** :- لُغ : بې موقع ګډا کـول ، اص : (۱) پـه دریـاب یـا سیند بـې ګودره ورګډېدل (۲) بې موقعې خبره کول.

**بېځائي** :- (بَې + دْزا + ئِيْ) [ پ ، اس ] و ـــــ بېځائې توب.

**بېځـل** :- (بـې + دْزَ + لْ) [ پ ، (ب، خ) بېتېنې) اس مـو ، وا ، ج : بېځلې] د کاڼو او شاړو بوټو نه جوړه پُشتـې یـا دُونکچه شان چې د سېلابي اوبو نه د کور یا پټې بچ کولو دپاره جوړولې شي. تکر.

**بېځل** :- (بَې + دْزَ + لْ) [ اف : پ (قاموس) اس،مذ ] (۱) د کـاڼو ډېرې یـا دونکچه ، ځلې ، سوپلې (۲) د کـاڼو دېـوال (۳) پـه مـرې هسـې د کـاڼو ځلې جوړول.

**بېځل** :- (بَې + دْزَ + لْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: بېځله ، ج : بېځلې ] هغه څناور چې ځل پرې نۀ وي. بې پالانه.

**بېځـل** :- (بَـې + دْزْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مـذ ] دېوسـه ، ګرونجۍ چې ګړې ، کوزې یا مشکونه پرې اېښولې شي. ګرونج.

**بېځنځه** :- (بَې + دْزَ + نْ + دْزَه) [ اف : پ (قاموس) ص ] سست ، ناړامـه ، لټ ، ناراسته ، الخې.

**بېځواکه** :- (بَې + دْز + وا+ که) [ اف : پ (قاموس) ص ] کمزورې ناتوانه ، مانده ، ډنګر ، کم قوت ، بېژواکه.

**بېځواکي** :- (بَې + دْز + وا+ کِيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] کمزوري ، ناتواني ، کم قوتي ، بېژواکي ، ماندګي.

**بېځه** :- (بَې + دْزَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بېځې ] د لحد تبۍ ، هغه پلن اوږد کاڼې یا تیږه چې د قبر په لحد کنبښنولې شي.

**بیچ** :- (بِيْ + چْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ] (۱) د یوې ګرانې کشـالې د اسانولو لاره (۲) طاقت ، وس.

**ـــــ ورتـه لیـدل** :- (اف) اص . د یـوې ګرانـې کشـالې د اوارولـو لاره بیـا موندل ، د یو کار د حل کولو طاقت موندل.

**بېچاره**:- (بې + چا + رَه) [ بې وسه ، بې وسیلې ، غریب ، خوار.

**بېچاوڼه** :- (بَې + چاؤ + ڼه) [ پ ، ه : بچهونا ، اس ، مؤ ، وا ، ج: بېچاوڼې ] (۱) بستره (۲) د کټ څادر ، پلنګ پوش ، سوزنۍ.

د ابـــوالقـــاسم د حـال نندارہ ګوره
د وښو په بېچاوڼه ناست دے امیر شه

**بیچک** :- (بِيْ + چَ + کْ) [ ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : بیچکونه ، بیچکینه] د اخستې مال هغه رسید چې پوره تفصیل او قیمت په کنبې لیک وي ـ بل.

**بیچنه** :- (بِيْ + چْ + نَه) [ پ (ب، خ) اس ، مذ] تور خمتائیز څادر چې په څنډو او پیڅوئې څۀ د کشیدې کار شوے وي.

**بېچون** :- (بَې + چُوْ + نْ) [ فا ، اس ، ص ، مذ ] چې ثاني نۀ لري ، چې مخې ئې نۀ وي۔ د خداوند پاک يو صفاتي نوم۔

**بيچونه** :- (بيْ + چو + نه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] وـ بيچاونه۔

**بيچـه** :- (بِـيْ + چَـه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مـؤ ] پېرشـاني ، شـينځه پيسه، لار ، کربنه ، د سر ويښتۀ چې واړه ولے شي۔ نو هغـه سپيني کرښې ته وئيلے شي۔

**بېچي** :- (بَې + چِيْ) [ پ (مل) اس ،مؤ ] ترور يا مشري ښـځې تـه د غـږ کولو اواز۔

**بېخـه** :- (بَـې + ښْـه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : بېخې ] يـو غرئيز وابښۀ چې ګډې بزې ئې خوري۔

**بېخ** :- (بَې + خْ) [ پ ، اس ،مذ ، وا ، ج : بېخونـه ] (۱) وېـخ ، جـړ ، ولـې (۲) بنياد ، اصل ، ريشه ، اره رده (۳) تله ، کونه ، دُنباله۔

ـــــ **اوکښل** :- (اص) بربادول ، جرړې ايستل ، نړول ، بېخ کښـل ، بنيـاد ايستل

ـــــ **ختـل** :- (اص) (۱) برباديـدل ، تبـاه کېـدل ، لـوچ لغـړ کېـدل ۔ (۲) خاندان او نسل ورکېدل ، نُوغے ورکېدل ، خاندان ميراتېدل۔

ـــــ **دې اوخېژه** :- (اص) د بد دعا په ډول وئيلے کېږي۔ تباه شې ، برباد شې۔

ـــــ **کښل** :- (اص) و ـــ بېخ اوکښل۔

ـــــ **نيـول** :- (اص) (۱) د بـوټي جـرړې مضـبوطېدل ، (۲) د څـۀ څيـز د لوښي په تله يا کونه کښې جمع کېدل۔

ـــــ **ورکول** :- (اص) بربادول ، بيخي تباه کول ، مونډه ورکول۔

ـــــ **وتلے** :- (اص) برباد ، تباه ، ورک ، ميرات۔

**بېخپور**:-(بَې+خْ+پو+رْ) [ اف : پ (قاموس) ] بالکل ، بيخي ، سُکټ۔

**بېخرتـي** :- (بَـې + خ + رْ + تـيْ) [ اف : پ (قـاموس) ص ] بـې انـدازې بېشماره ، بېخرته۔

**بېخرتې** :- (بَې + خْ + رْ + تَېې) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ] بې مـوقعې کار ، بې ځايه کار۔

ـــــ **کول** :- (اف) اص۔ بې موقعې کار کول ، بې ځايه کا ر کول۔

**بېخور**:- (بَې + خْ + وْ + رْ) [ پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا: بېخوره ] (۱) بنيـادي، بېخ لرونکے ، (۲) کوناټور ، د غټو کوناټو خاوند ۔

**بېخول** :- (بَې + خو + لْ) [ اف : پ (قاموس) ص ج بـد رنـګ ، بدشـکل ، سخا ۔

ـــــ **کېدل**:- (اف) اص۔ بدرنګ کېدل،بدل شکل کېدل ،سخا کېدل۔

**بېخي** :- (بې + خيْ) [ پ ، ص ] بالکل ، هر ګز ، سُکټ۔

**بېد** :- (بَې + دْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج بېدُونه ] وله ، خروله ، د بېنت ونـه ، يو قسم ونه چې څانګې ئې ډېرې لچک دارې وي۔

د خـــزان لــــه ترسه ګل ته کتے نۀ شم
په دا باغ کښې لکه بېد هسې لرزان يم (کاظم خان)

**بېداد** :- (بَې + دا + دْ) فا ، اس مذ ، وا ، ج : بېدادونـه ] د داد ضـد ، ظلم ، جبر ، جفا ۔

د مظلوم په قتل ستا د بېداد غشي
الـــــوته له دې سروره په هوا که (کاظم خان)

**بېـدار** :- (بَـې +دا + رْ) [ فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج (مـؤ، وا، بېـداره ، ج : بېدارې) ] (۱) ويښ

چې بېدار شې په ايوان د ناز له خوابه
ستـــا تـر بام نۀ شه بلند آفتاب هر ګز (کاظم خان)

(۲) هوشيار ، تکړه ، خبردار۔

**بېدار بخت** :- (اص) (۱) خوش قسمت ، خوش نصيبه (۲) يو نوم

**بېدار ښوکيدار**:- (اص) هر وخت تيار۔

**بېدار مغز** :- (اص) هوشيار ، پوهه ، ويښ۔

**بېدارول** :- (بَې + دا + رَ + وْ + لْ) [ پ ، مص ، مت ] (۱) ويښـول ، د خوب نه پاڅول (۱) هوښيارول، پوهول ، په غوږ وهل ، خبردارول۔

**بېدارونه** :- (بَې + دا + رَ + وْ + نَه) [ پ ، حمص ] (۱) ويښـونه ، د خوب نـه پاڅونه (۲) پوهونه ، په غوږ وهنه ، خبردار کونه۔

**بېدارووُنکے** :- (بَې + دا + رَ + وُوْ + نْ + کے) [ پ ، اس ، فا ، ع، مذ، وا، ج : بېـــدارووُنکي ] (۱) بېـــدارووُنے ، ويښـــووُنکے ، د خـــوب نـــه پاڅوُونکے ، (۲) پوهـ کوُونکے ، په غوږ وهوُنکے ، خبردارووُنکے۔

**بېـــدارووُنے** :- (بَـې + دا + رَ + وُوْ + نـے) [ پ ، اس فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بېدارووُني ] و ــــ بېدارووُنکے۔

**بېداري** :-(بَې + دا + رِيْ) [ فا ، اس ، مؤ ] (۱) ويښـه ، ويښـتوب ، چې اودۀ نۀ وي (۲) هوشياري ، پوهـه ، خبرداري (۳) استادګي لګېدنه۔ لګه۔

**بېداره بېداري** :- (اص) (۱) ويښتوب ، په ويښه ، غړولې سترګې ،

چـــې ابراهيم غوندې سرې ورته ترلې سترګې
ما په بېداره بېدارۍ کښې هسې خوب اوليدۀ (جناب کاکاخېل)

(۲) د قوم په اړ ويښېدل او يو خبرې ته پام کېدل۔

**بېدارېدل**:- (بَې + دا + رې + دْ + لْ) [ پ ، مص لا ] (۱) ويښـېدل ، د خوب نه پاڅېدل ، (۲) پوهه کېدل ، خبردارېدل۔

**بېدارېدنـه** :- (بَـې + دا + رې + دْ + نـه) [ پ ، حمـص ] (۱) بېدارېـدۀ ويښېدۀ ، د خوب نه پاڅېدنه ، (۲) پوهـ کېدنه ، خبردارېدنه۔

**بېدارېـدُونکے** :- (بَـې + دا + رې + دُوْ + نْ + کَـے) [ پ، فـاع ، مـذ ،وا ج : بېدارېدُونکي ] (۱) ويښېدُونکے ، د خوب نه پاڅېدونکے (۲) پوهـه کېدونکے ، خبردارېدونکے۔

**بېدارېدۀ** :- (بَې + دا + رې + دۀ) [ پ ، حمص ] و ــ بېدارېدنه۔

**بېدانت**:- (بَې + دا + نْ +تْ) [ ه ، اس ، مذ ] ويـدانت ، د بيـاس جي جـوړ کړے هغه شاستر چې د توحيد بحث پکښې شوے دے۔

**بيداوه** :- (بِيْ + دا + وَه) [ پ ، (رځ) اس ، مؤ ] بـاډيوه ، ګـوډۍ ، پتنـګ ، باجاوه، باداوه۔

**بيدو** :- (بِيْ + دُوْ) [اف :پ (قـاموس) ص ] هم هغه شان، هغه رنګ، په څېر

**بيـدول** :- (بِـيْ + دْ + وْ + لْ) [ اف : پ (قـاموس) مـص مـت ] اودۀ کـول ، خوبولے کول ، لولو کول ، ويده کول۔

**بيدونګ**:-(بي+دْ+ وْ+ نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـ بيدونه۔

**بيدونه** :- (بيْ + د + و+ نَـه) [ اف : پ (قـاموس) حمص] ويدونـه ، خوبـولے کونه ، اودۀ کونه۔

**بيدوُونکے** :- (بيْ + دْ + وُوْ + نْ + کَے) [ اف ، پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : بيدوُونکي ] اودۀ کوُونکے ، ويده کوُونکے ، خوبولے کوُونکے ، بيدُوونکے

**بيدوُونے** :- (بيْ + دْ + وُوْ + نَے) [ اف : پ (قـاموس) فـا ع ، مذ ، وا ، ج : بيدوُوني ] و ــــ بيدوُونکے۔

**بيدۀ**:- (بِيْ + دَۀ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، (مؤ ، وا : بيده ، ج: بيـدې ) ] اودۀ ، ويدۀ ، خوبولے۔

**ببده** :- (بَې + دَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : ببـدې ] لمـوړه ، اوچ وابښۀ ۔

**بېده والې** :- (بېِ + دَه + وا + لَې) [اف : پ (قاموس) ص] اودهٔ کېدنه.

**بېديا** :- (بَې+دْيا) [پ،اس،مؤ، و، ج :بېدياوې، بېدياګانې ] (۱) صحرا، اوچه مېره

چېرته ځم له چا پوښتنه کړم چې څه شول

تـــا نتلي ساكـــن شوي په بېديا دي (صدر خان ختک)

(۲) بهر ته ، بل لور.

**بېديا کوتره**:- (بَېديا + کو + تْ + رَه) [پ ، اس ، مؤ] د غرهٔ کوتره، ډاګي کمتره، ځنګلي کوتره.

**بېديا نې**:(بَې+دْ+يا+نَې) [پ،اس ص،مذ ،و،ج : بېدياني،مؤ، وابېدياني،] (۱) صحرانې، د صحرا اوسېدونکې (۲) بهرنې ، د بل ځاے

**بېدي بېديا** :- (بَې + دِيْ + بې + دْ + يا) [پ ، ص] ويجاړه ، غېر اباده ، خشکه مېره ، لُوټک بيابان ، چُول بيابان.

**بېدېدل** :- (بېِ + دې + دْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] اودهٔ کېدل ، ويدهٔ کېدل ، خوبولے کېدل.

**بېدېدنګ**:-(بېِ+دې+دْ+نْ+ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ بېدېدنه.

**بېدېدنه** :- (بېِ + دې + دْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] اودهٔ کېدنه ، ويدهٔ کېدنه ، خوبولے کېدنه.

**بېدېدُونکے** :- (بېِ + دې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) فا ع ، مذ ، وا ، ج : بېدېدُونکي] اودهٔ کېدونکے ، بېدېدونے ، ويدهٔ کېدُونکے ، خوبولے کېدُونکے.

**بېدېدُونے** :- (بېِ + دې + دُوْ + نَے) [اف : پ (قاموس) فا ع ، مذ ، وا ، ج : بېدېدونې] و ـــ بېدېدُونکے.

**بېړ**:- (بَې +ړ) [انګ ، ص] بد ، خراب ، وران.

**بېړ** :-(بَې+ړْ) [انګ،اس،مذ] (۱) بستره (۲) د سيند يا د خوړ تل ، لوښے

**بېړ روم** :- (بَېړ + رُوْ + مْ) [انګ ، اس ، ص ، مؤ] د ځملاستو کمره، د اودهٔ کېدو کمره.

**بېړ منتېن** :- (بَې + ړ + مِ + نْ + تِې + نْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا ، بېړمنه ، ج : بېړمنې) ] کچے ، پيړ ، چې پښې ئې کړې وي - پيړے ، چُوړے ، اډےګوډے ،يو قسم لوبه.

**بېړن پاول**:- (بې + ړَ + نْ + پا + وَ + لْ) [انګ ، اس ، معر ، مذ] د سکاوټ تحريک باني.

**بېړون** :- (بَې + ړَ + وْ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: بېړونه ، ج : بېړونې) ] (۱) د ازغکي بوټے (۲) بد رنګې ، بې ډوله ، چې تراشلے نهٔ وي.

**بېړۍ**:- (بَې + ړ + يَې) [پ ، اس مؤ] سپشتې ، د زنګون سترګه .

ـــــ **بېټېدل** :- (بَ ، خ) اص.جوارې کټل ، چکه کښېناستل.

ـــــ **شکېدل** :- (اف) اص.په سپشتو لوبې کول ، ګيټې غورزول جوارې کول

ـــــ **مرهٔ کېدل** :- (اف) اص.قسمت کوټه کېدل ، بخت خوارېدل.

ـــــ **شکېدل** :- (اف) اص.بخت بېدارېدل ، قسمت ښهٔ کېدل ،

**بېر**:- (بېِ + رْ) [پ (عا) انګ ، بېير،اس ، مذ] و ـــ بېير.

**بېرا** :- (بې + را) [انګ ، بېرر ، اس ، مذ، وا ، ج : بېراګان] نوکر ، خادم ، خدمتګار ، د ډوډۍ چائيو اېښودونکے.

**بېرا** :- (بَې + را) [پ (عا) ه : بهرا ، اس ، مذ] ورور ، عزيز.

**بېراتوب** :- (بَېـرا + تـو + بْ) [پ ، اس ، مـذ] بېراګيـري ـ خـدمتګيري د کړنګ کار کوُونکے.

**بېراګيري**:- (بَېرا + ګي + رِيْ) [پ ، اس] و ـــ بېراتوب.

**بېرامي** :-(بَې+را+ مِيْ) [پ (عا) اس ، مؤ] (۱) بې آرامي (۲) بې رحمي.

**بېــران** :- (بَــې + را + نْ) [اف :پ (قــاموس) اس ، ص ، مــذ (مــؤ ، وا بېرانه،ج : بېرانې) ] (۱) ويران ،وران،ويجاړ ، برباد(۲) بېهوشه.

ـــــ **کول** :- (اف) اص.(۱) ورانول (۲) بېهوشه کول .

ـــــ **کېدل** :- (اف) اص ، (۱) ورانېدل ، بېهوشه کېدل.

**بېرانول** :- (بې+ را+ نَ + وْ+ لْ) [اف : پ (قاموس) مص ، مت] (۱) ورانول (۲) بېهوشه کول.

**بېرانونګ**:- (بې + را + نَ + وْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ بېرانونه.

**بېرانونه** :- (بَې + را + نَ + وْ + نه) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱) ورانونه (۲) بېهوشه کونه.

**بېرانوُونکے** :- (بــې + را + نَ + وُوْ + نْ+کَــے) [اف : پ (قــاموس) اس ، فــا ع،مذ ،و،ج : بېرانوُونکي] (۱) ورانوُونکے (۲) بېهوشه کوُونکے.

**بېرانــه** :- (بــې + را + نَــه) [اف : پ (قــاموس) اس ، ص ، مــؤ ، وا ، ج : بېرانې] (۱) ويرانه ، ويجاړه (۲) بده خبره چې بده بېرانه هم ورتـه وائي.ورانه .

**بېرانــي**:- (بــې + را + نــيْ) [اف : پ (قــاموس) اس ، مــؤ] (۱) بېهوشــي (۲) خرابي ، وراني (۳) بد معاملګي.

ـــــ **رسول** :- (اف) اص.خرابول ، ورانول ، نقصان رسول.

ـــــ **کول** :- (اف) اص.وراني کول ، خرابي رسول.

**بېرانېــــدل** :- (بــې + را + نــې + دَ + لْ) [اف : پ (قــاموس) مــص لا] (۱) ورانېدل (۲) بېهوشه کېدل.

**بېرانېدنګ** :- (بې + را + نې + دَ + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ بېرانېدنه.

**بېرانېدنــه** :- (بــې + را + نــې + دَ + نَــه) [اف : پ (قــاموس) حمــص] (۱) بېرانېدهٔ ، ورانېدنه ، خرابېدنه (۲) بېهوشه کېدنه.

**بېرانېدُونکے** :- (بې + را + نې + دُو + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مــذ ، وا ، ج : بېرانېــدُونکي] (۱) وېرانېــدُونکے ، بېرانېــدُونکے ، (۱) بېهوشه کېدونکے.

**بېرانېدُونے** :- (بې + را + نې + دُوْ + نے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا، ج : بېرانېدُوني] و ـــ بېرانېدُونکے.

**بېرانېدهٔ** :- (بې+را+نې+دَهٔ) [اف : پ (قاموس) حمص) و ـ بېرانېدنه.

**بېربل** :- (بېِ + رْ + بَ + لْ) [ه ، اس ، معر ، مذ] (۱) لُغ.پهلوان ، زورور (۲) اص .د اکبر بادشاه يـو وزير چې د هغهٔ پـه نهـو خوښـو کسـانو کښې يو ؤ.دے په کړاکړ کښې د پښتنو د لاسه مړ کړے شو.(۳) په قصو کښې د ملا دوپيازه په مقابله کښې د ټوقو يو کردار.

**بېرت**:- (بَې + رْ + تْ) [پ ، ص] پلن ، واز ، خلاص ، دا ټکے د ارت سره يو ځاے استعمالېږي.لکه ارت بېرت.

**بېرته**:-(بې+رْ+ تَه) [پ ، ص] خلاص ، لرې ، لکه : ''ور بېرته کړه''

ـــــ **کول** :- (اص) خلاصول ، لرې کول ، پرانستل.

ـــــ **کېدل**:-(اص) (۱) خلاصېدل،لرې کېدل (۲) ډډې ته کېدل پرده کول.

**بېرتــه** :- (بَې+رْ+تـه يـا بْ+ يَ + رْ + تَـه) [پ ، ص] (۱) لـرې پـه فاصله (۲) واپس ، بيا ، پس ته ، پستنه.

تــر ورځ تېرې اوبهٔ بېرته نهٔ جاروځي

نــهٔ جاروځي تېر ساعت په بېرته بيا (رحمان)

ـــــ **اخستل** :- (اص) واپس اخستل ، واپس کول ، پستنه اخستل.

ـــــ **پاتېدل**:-(اص) په سبق ياسفر وغېره کښې د خپلو ملګرو نه روستو

پاتې کېدل،روستو پاتې کېدل،لرې پاتې کېدل (۲) جدا پاتې کېدل.

ـــــ **تلل** :- (اص) واپس تلل ، لرې تلل.

ـــــ **رابرغېدل**:-(اص) ببرته راغبرگېدل ، واپس کېدل ، واپس راتلل.

ـــــ **راغبرگېدل** :- (اص) و ـــ ببرته رابرغېدل.

ـــــ **کېدل** :- (اص) (۱) واپس کېدل (۲) لرې کېدل.

ـــــ **گرځېدل** :-(اص) (۱) واپس گرځېدل،واپس کېدل،په شا کېدل (۲) خپل قول نه اوښتل ، د وعدې نه منکرېدل ، پښېمانه کېدل ، په شاکېدل.

ـــــ **ورکول** :- (اص) واپس کول.

**ببېړه** :- (بَېـ + رْ + ړَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] سپېرکنډه ، سپېرکونډه ، خړه مرغۍ ، خړاکه ، خراړه.

**ببرستېر**:- (بَبې + رِ + سْ + تِېَ + رْ) [انگ ، اس ، مذ ، وا ، : ببرستېران ( مؤ ، وا: ببرستېره ، ج : ببرستېرې ) ] هغه وکيل چې ولايت نه ئې د وکالت سند اخستے وي. ببرستېرايټلاء.

**ببرستېرايټ لاء** :- (اص) و ـــ ببرستېر.

**ببرستېرتوب** :- (بَـبې + رِ+ سْ + تِېَ + رْ + تـو + بْ) [پ ، اس ، مذ] ببرستېري ، وکالت.

**ببرستېري** :- (بَبې+ رِ + سْ + تِېَ + رِيْ) [پ تر ، اس ، مؤ] ببرستېرتوب وکيل توب ، وکالت.

**ببرغ** :- (بَې + رَ + غْ) [پ ، ع : بيرق ، اس ، مذ ، وا ، ج : ببرغونه ] جنډا ، نشان، توغ ، نخښه.

**ببرنجے توت** :- (بَې + رَ + نْ + جَے + تُو + تْ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ] يو قسم تُوت.

**ببرگال** :- (بَـې + رْ + گـا + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د غـوا د څرمنې مشک.

**ببرنډُوکے** :- (بې + رَ + نْ + ډُوْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : ببرنډُونکي ، (مؤ ، وا: ببرنډُوکې) ] يرنډُوکے ، ډارن ، ويرېدونکے ، بُزدله ، زړۀ ورکے.

**ببرن**:- (بې + رَ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] غرئيزه رشقه.

**ببرنگ** :- (بَې + رَ + نْ + گْ) [انگ ، اس ، مذ] هغه کړارۍ چې په چرو گرځي او په پايو وغېره کښې استعمالېږي.

**ببرنه** :- (بَې + رْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] يرېدنه ، ډارېدنه.

**ببرو** :- (بَـې + رُوْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، (مؤ ، وا: ببروه ، ج: ببروې) ] بې حيا ، شوخ ، بې شرمه ، بد لحاظه.

**ببروت**:- (بَې + رُوْ + تْ) [اس ، معر مذ] د لبنان مرکزي ښار.

**ببروزه** :- (بَې + رو + زَه) [فا ، اس ، مؤ] گنده ببروزه. يو قسم ماده چې د نښتر د ونې نه اوزي. چې ورنه د تارپينو تېل ويستلے کېږي. د نښتر ژاوله يا ژوغله.

**ببرول**:-(بَې+رَ+ وَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] ويرول ، ډرول.

**ببروميټر** :- (بَې + رو + مِيْ + ټَ + رْ) [انگ ، اس ، مذ] بادنما ، مقياس الهوا، هغه آله چې د هغې په ذريعه د باد مخه او دباؤ (زور) معلومولے شي.

**ببرون**:-(بَـې+رُو+نْ) [فا،اس،مذ] (۱) بهر،ورڅنې،وتے (۲) څرگند ، برڅېره ، ښکاره ، بربنډ(۳) ويستلے ، ايستلے شوے.

ساه مې خېژي ولې دا صلاح مې نۀ ده
چې ببرون له دله غشي د مژگان کړم (ابوالقاسم)

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) بهر کول ، بهر ته ويستل (۲) څرگنده ول ، ښکاره کول ، برڅېره کول.

ـــــ **کېدل** :- (اص) (۱) بهر کېدل ، بهرته ويستل کېدل (۲) څرگندېدل ، ښکاره کېدل ، برڅېره کېدل.

**ببرونگ**:-(بَې+ رَ+ و + نْ + گْ) [اف : پ (قاموس) حمص ] و ـ ببرونه.

**ببرونه** :- (بَې + رَ + و + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] يرونه ، ډرونه.

**ببروني** :- (بَې + رُوْ + نِيْ) [فا ، ص ] بهرني ، ښکاره ، څرگند.

**ببرولے**:- (بَې + رَ + و + لَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : ببرولي ] يرولے ، ډار کړے.

**ببروُونکے** :- (بَـې + رَ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع مذ ، وا ، ج : ببروُونکي ] يروُونکے ، ډروُونکے ، ببروُونے.

**ببروُونے** :- (بَـې + رَ + وُوْ + نَے) [اف : پ (قاموس) فا ع ، مذ ، وا ، ج : ببروُوني] و ـــ ببروُونکے.

**ببره** :- (بَې + رَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : ببرې] (۱) يو قسم ونه. (۲) د ببرې مېوه

پرورش که ئې په شهدو په شکر کړې
د خُـرمـا تر خونده نۀ رسېږي ببرې (خوشحال)

(۳) د پوزې چارگل

مرصع ببرې د نور لرې په پوزه
اکتفا په تور لونگ کا هغه يار (خوشحال)

(۴) ب ، خ : يو خاص قسم دانه،ببره.

ـــــ **سنول** :- (اص) ببره شنول ، د ببرې ونه د مېوې راغورزولو دپاره څنبل ، ببره څنډول

ـــــ **شنول** :- (اص) و ـــ ببره شنول ،ببره څنډول.

**ببره**:- (بَې + رَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] ويره ، ډار ، خوف.

چې مدام زۀ ستا ومخ وته نظر ورم
د ببلتون له ببرې زړۀ زېر زبر ورم (اکبر زمينداور)

ـــــ **په زړۀ کښې وراچول** :- (اص) (اف) ډارول ، ترسول ، يرول.

ـــــ **کول** :- (اف) اص. يره کول ، ډارکول ، ترسېدل ، ببره ورلوئېدل.

ـــــ **له سترگو وتل**:-(اف) اص. يره يا ډار نۀ کول،د زړۀ نه خوف وتل.

ـــــ **ورلوئېدل** :- (اف) اص.و ـــ ببره کول.

**ببره**:-(بَې+رَه) [پ،انگ : بيرر ، اس ، مذ، وا ، ج : ببره گان] و ـــ بيرا.

**ببرۍ** :- (بَې + رَ + ی) [پ (ظفر) اس ، مؤ] بورۍ ، د لُوخې مېوه.

**ببرېدل** :- (بَـې + رې + دْ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص لا] يرېـدل ، ډارېدل ، ترسېدل.

**ببرېدلے** :- (بَې + رې + دْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ببرېدلي ، (مؤ ، وا : ببرېدلې ) ] يرېدلے ، ډارېدلے ، ترسېدلے.

**ببرېدنگ** :- (بَې + رې + دْ + نْ + گْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ برېدنه.

**ببرېدنه** :- (بَـې + رې + دْ + نَـه) [اف : پ (قـاموس) حـمـص] يرېدنـه ، ډارېدنه ، ترسېدنه ، ببرېدۀ.

**ببرېدُونکے** :- (بَې + رې + دُوْ + نْ + کَے) [اف ، پ (قاموس) فـا ع ، مذ ،وا، ج : ببرېدُونکي ] يرېدُونکے ، ډارېدُونکے، ترسېدونکے.

**ببرېدۀ** :- (بَې + رې + دۀ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ ببرېدنه.

**بيرو** :- (بِيْ + رُوْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ټيک ، پزغمے ، چارگل ، خولے ، ببره

**ببرونه**:-(بَې + رَو + نه) [اف : پ (قاموس) ص ] بې ترتيبه ، بې واره.

ـــــ **کول** :- (اف) اص. بې ترتيبه کول ، بې واره کول.

**ـــــ کېدل** :- (اف) اص ـ بې ترتيبه کېدل ، بې واره کېدل ـ

**بېروني**:-(بَې+رُو+نِي) [ اف : پ (قاموس) اس،مؤ] بې ترتيبي،بې واري ـ

**بېروه**:- (بَې + رَ + وَه ) [ پ ، (ب،خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : بېروئې ] کبل ـ

**بېړ**:-(بِيْ + ړْ ) [ پ ، ه : بهيڑ ، ص، مذ] گڼه گوڼه ، د خلقو زياته غُنډه ـ

**ـــــ کول** :- (اف) اص ـ گڼه کول ، راغُنډېدل ـ

**ـــــ کېدل** :- (اف) اص ـ گڼه کېدل ، د خلقو يو ځاے راجمع کېدل ـ

**بېـړا** :- (بَې + ړا ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مـذ ] (۱) کـم عقـل ، ناپوهـه بودلے (۲) بې فکره ، بې غمه ـ

**بېړاتـوب**:-(بَېړا+تـو+بْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ] (۱) کـم عقـل تـوب ، ناپوهي ، ناداني (۲) بې فکري ، بې غمي ـ

**بېړاگے**:- (بَې + ړا + گے ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، تصغير ، مذ (مؤ ، وا : بېړاگۍ ) ] و ـــــ بېړا ـ

**بېړل** :- (بَې + ړَ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] څۀ دعوٰی سر دوباره کول ، څۀ معامله بيا را اوچتول يا ژوندۍ کول ـ

**بېـړل** :- (بَې + ړَ + لْ ) [ پ ، (ب، خ) مـص مـت ] شـړل ، سپکول ، پـه بـې عزتۍ ويستل ـ

**بېړلے** :- (بَې + ړَ + لَے ) [ پ ، (ب، خ) مـف ، مـذ ] شـړلے شـوے ، سپک کړے شوے ، په بې عزتۍ ويستلے شوے ـ

**بېړلے**:-(بَې+ړَ+لَے) [ اف : پ (قاموس) ص ] سر دوباره شوې دعوٰی ـ

**بيړندے** :- (بِيْ + ړَ+ نْ + دَے ) [ پ (ب، خ +گن) ص ، مذ ، وا ، ج : بيړندي ، (مؤ ، وا : بيړندۍ ) ] گړندے ، تېز ، په بيړه کښې ، تُند ، تاديجن

**بېـړو** :- (بَـې + ړُو) [اف :پ (قـاموس) ص] تـادي کـوُونکے ، بيـړه کـوُونکے ، جلد باز

**بېړُونکے** :- (بَې + ړُو + نْ + کَے ) [ پ (ب،خ) فا ع ، مذ ، وا ، ج : بېړُونکي ] شړُونکے ، په بې عزتۍ ويستونکے ، سپکوُونکے ـ

**بېړُونکے** :- (بَـې + ړُوْ + نْ + کَـے ) [ اف : پ (قـاموس) فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: بېړُونکي] سردوباره دعوٰی را اوچتوُونکے ـ

**بيړه** :- (بِيْ + ړَه ) [ پ ، اس ، مؤ] تادي ، جلدي ، جلتي ، تُندي ـ

**ـــــ پر کول** :- (اص ) په کار تادي جوړول ـ

**ـــــ جوړول** :- (اص ) تادي جوړول ، تېزي جوړول ـ

**ـــــ کول** :- (اص ) تادي کول ، جلتي کول ، تُندي کول ، توده کاڼي په بڼه منډل، تېزي کول ـ

**ـــــ کېدل**:-(اص ) تادي کېدل،تُندي کېدل،جلدي کېدل ، تېزي کېدل ـ

**په بيړه** :- (اص ) په تادۍ ، زر ، په جلتۍ ـ

**په بيړه بيړه**:-(اص ) زر زر،په تادۍ تادۍ ،په منډه منډه ، په مړدۍ ـ

**په بيړه کول**:- (اص ) څۀ کار زر زر کول ، څۀ کار په تُندۍ کول ـ

**په بيړه ورتلل**:-(اص ) زر ورتلل،گړندے ور رسېدل ، په منډه ورتلل ـ

**دبيړې کار** :-(اص) د جلتۍ کا ، د تادۍ کار، متل :"د بيړې کار د شېطان وي"

**بېـړه** :- (بَـې + ړَه ) [ پ ، ه : بېـړا ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بېـړې ] (۱) د سمندري جهازونو يا کشتو قطار(۲) رساله ، ټولے ، جته ـ

**ـــــ چپه کول** :- (۱) بېړه لاهو کول ، غرقول ، (۲) بېخي تباه کول ، د چا بېخ بنياد ويستل ـ

**ـــــ چپه کېدل** :- (اص ) (۱) بېړه لاهو کېدل ، غرقېدل (۲) بېخي تباه کېدل ، بېخ بنياد وتل ، قسمت بدېدل يا خرابېدل ـ

**ـــــ لاهو کول** :- (اص ) و ـــــ بېړه چپه کول ـ

**ـــــ لاهو کېدل** :- (اص ) و ـــــ بېړه چپه کېدل ـ

**بېړۍ**:- (بَې + ړَ + يَۍ ) [ پ، اس ، مؤ ، وا: ج ] (۱) لويه کشتۍ ، (۲) د اوسپنې ځولنې چې د مجرمانو پښو تـه اچولے شي ،(۳) د سگرټ يو ادنٰی قسم چې د يو قسم پاڼې نه جوړولے شي ـ بيړې ـ

**ـــــ په گرداب کښې لوئېدل** :-(اص ) (۱) بېـړۍ پـه غـولۍ يـاول کښـې گېرېـدل (۲) پـه تکليـف او مصيبت اختـه کېـدل، پـه بـده ورځ اختـه کېدل ـ

**ـــــ چپه کول** :- (اص ) و ـــــ بېړه چپه کول ـ

**ـــــ چپه کېدل** :- (اص ) و ـــــ بېړه چپه کېدل ـ

**ـــــ چلول** :- (اص ) کشتۍ چلول ـ

**ـــــ چلېدل** :- (اص ) (۱) بېـړۍ يـا کشـتۍ پـه دريـاب کښـې تلـل راتلـل (۲) گُذاره کېدل ـ

**ـــــ څښل** :- (اص ) د پاڼې نه جوړ ادنٰی قسم سگرټ نه لوگے ايستل بيړۍ نوشي

**ـــــ د کمر خوا ته رسول** :- (اص ) بېړۍ د حفاظت ځاے ته رسول ـ

د سيند په منځ کښې راته جوړ شول غوېمنډونه
راکـــــــاږه جانانــــه! بېړۍ د کمر خوا ته کړه

**ـــــ روانول** :- (اص ) (۱) کشتۍ روانول (۲) د چا کار چلول ـ

**ـــــ له پښو کښل** :- (اص ) (۱) د بند نه ازادول (۲) د ذمه وارۍ نه ځان خلاصول ـ

**ـــــ له گردابه کښل** :- (اص ) (۱) بېړۍ د غـولۍ يـا ول نـه بهر کـول (۲) د تکليف او بدې ورځې نه خلاصول ـ

**ـــــ ور اچول** :- (اص ) (۱) سيند ته بېړۍ ورگډول ، (۲) ځولنې وراچـول ، قېدول (۳) چا ته وادۀ کول ـ

**بنده بېړۍ راوتل**:- (اص ) (۱) ډوبه بېړۍ راوتـل (۲) گران کـار اسـانېدل ، د څۀ کشالې نه په اسانه خلاصېدل (۳) د زړۀ مراد پوره کېدل ـ

**بنده بېړۍ روانېدل** :- (اص ) د زړۀ مراد ترسره کېدل ـ

**په دوؤ بېړو پښه ايښول** :- (اص ) و ـــــ په دوؤ بېړيو کښې سورېدل ـ

**په دوو بېړيو کښې سورېدل**:- په يو وخت دوه کارونه کول ، په يو کار کښې هم کاميابي نۀ موندل ، په دوو بېړو پښه ايښودل ـ

**ډوبه بېړۍ راوتل**:- (اص ) و ـــــ بنده بېړۍ راوتل ـ

**بيړے** :- (بِے + ړَے ) [ پ (سو) اس ، مذ] و ـــــ باوېړے ـ

**بېړۍ وال** :- (بَېړۍ + وا + لْ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا] کشتۍ وال بېړۍ چلوُونکے ، ماڼگے ـ

**بيز** :- (بِيْ + زْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا] (۱) وز ، سـه ، چـېلے مـتـل : "کـه غـم دې نۀ وي ځان له بيز واخله ـ (۲) شادو ، نر بيزو ـ

**بېز**:- (بَې + زْ + اف : پ (قاموس) اس ، مذ] اوچه گيا ـ

**بېزار يا بېزاره** :- (بَې + زا + رْ يا رَه ) [ فا ، ص ، مذ (مؤ ، وا: بېـزاره ، ج : بېزارې ) ] ستومانه ، وېزاره ، تر پوزې ، تنگ ـ

دواړه نۀ کېږې رحمانه
يا بـه يار شي يا بېزار

**بېـزارول** :- (بَې + زا +رَ +وَ + لْ ) [ پ ، مـص مت ] وېزارول ، تنگـول ، تـر پوزو راوستل ـ

**بېزارونـگ** :- (بـې + زا + رَ + وَ + نْ + گْ ) [ اف : پ (قـاموس) حمـص] و ـــــ بېزارونه ـ

**بېزارونـه**:- (بـې + زا + رَ + وْ + نَـه ) [ پ ، حمـص ] وېزارونـه ، تـر پـوزو راوستنه ، تنگونه

**بېزاروُونکے** :- (بَې + زا + رَ + وُوْ + نْ + کَے ) [ پ ، اس ، فـاع ، مذ ، وا ، ج : بېزاروُونکي ] وېـزاروُونکے، تـر پـوزو راوسـتونکے ، تنگـوُونکے ،

ستومانه کوُونکے۔

**بېزاري** :- (بَې + زا + رِيْ) [فا،اس ، مؤ] وېزاري ، تنګوالے ، ستوماني ، کرکه ، نفرت۔

**بېزاربدل** :- (بَې + زا + رِ + دَ + لْ) [پ، مص لا] وېزاربدل۔

**بېزاربدنګ**:- (بَې + زا + رِ + دْ + نْ + ګ) [اف :پ (قاموس) حمص] و ـــ بېزاربدنه۔

**بېزاربدنه**:-(بَې+زا+ رِ + دْ + نَه) [پ، حمص] وېزاربدنه۔بېزاربدۀ۔

**بېزاربدُونکے** :- (بَې + زا + رِ + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بېزاربدُونکي] وېزاربدُونکے۔

**بېزاربدۀ** :- (بَې + زا + رِ + دۀ) [پ ، حمص] و ـــ بېزاربدنه۔

**بېزاوه**:-(بَې+زا + وَه) [اف : پ (قاموس) ص] بې وسه ، ناچار، مجبور۔

**بېزل/بېځـــل** :-(بـــې + زْ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص] رفـو کـول ، پېوندلګول۔

**بېزلے /بېځلے** :- (بَې + زْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف، مذ ، وا ، ج : بېزلي] رفو کړے، پېوند شوے۔

**بېزنه/بېځنه** :-(بَې + زْ +نَه) [اف : پ (قـاموس) حمص] رفـو کونه،پېوند لګونه۔

**بېزو**:- (بِيْ + زو) [پ(ب،خ+ګن) اس، مؤ، وا، ج : بيزوګـانې] شـادو ، د بيزو ماده ۔متل : " د بيزو هسې نخرې څۀ کمې وې چې لاځان پسې ئې ګونګرو هم وتړل۔"

**د بيزو بازي يا پيښې پرې کول** :- (اص) په چا باندې خوشامندې يا منتونه کول ، څوک د څۀ کار دپاره کړول يا ځورول۔

**د بيزو بازي يا پيښې چاته کول** :-(اص) د چا خوشـامندې کـول ، د شـادو پيښې کول۔

**د بيزو پرهار** :- (اص) نۀ جوړېدُونکے پرهر ، د شادو پرهر۔

**د بيزو پرهار ځنې جوړول**:- (اص) اسان کار ګرانول ، د وړې خبرې نه لـوے مشکل کار ظاهرول۔

**بيزو بازي** :-(بِيْ + زو +با+زِيْ) [پ،اس ،ص ، مؤ] خوشامنده چاپلوسي۔

**بيزوټـــارے** :- (بـــيْ + زو + ټـــا + رَے) [پ ، اس ص ، مـــذ ، وا ، ج : بيزوټاري] يرندُوکے ، ډارن ، ويربدُونکے ، بې زړېه ، زړۀ ورکے۔

**بيزوټے** :- (بِيْ + زو + ټَے) [پ ، اس ، تصغير ، مذ ،وا ، ج : بيزوټي، (مؤ ، وا: بيزوټى)] بيزوګے ، د بيزو بچے ، شادوګے ، بيـزو مخے شادو مخے ، سُور بوېک۔

**بيزوګر**:- (بِيْ + زو + ګَ + رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بيزوګران، (مؤ ، وا : بيزوګـره ، ج : بيزوګـرې)] (۱) بيـزو وان ، پـه شـادو لـوبې نخـرې کوُونکے ۔ګُونګر (۲) سو ۔د بزو چېلو شپون۔

**بيزوګے** :- (بِيْ + زو + ګَے) [پ ، اس ، تصغير، مذ ،وا ، ج: بيزوګي (مؤ ، وا: بيزوګى)] و ـــ بيزوټے۔

**بېزونکے**:- (بَې + زُو + نْ + کَے) [اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بېزُونکي] رفـو کوُونکے، پېوند لګوُونکے۔

**بېزونے**:-(بَې+زُوْ+نَے) [اف : پ (قاموس) فـا ع،مذ ،وا، ج: بېزوني، (مؤ ، وا: بېزونې)] د رفو کار کوُونکے ، پېوند لګوُونکے ، درزي۔

**بيزو وان**:- (بِيْ + زو + وا+ نْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بيزو وانـان ، (مؤ ، وا: بيزو وانه ، ج : بيزو وانې)] و ـــ بيزوګر۔

**بيزو واني** :- (بِيْ + زو + وا+ نِيْ) [پ ، اس ، مؤ] بيـزو يـا شـادو سـاتنه ، او لوبې پېښې پرې کونه۔

**بيزے** :- (بِيْ + زَے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : بيزيان] د بزې شپشتې ، بېړى ، بيز يار۔

**بيز يار** :- (بِيْ + زْ + يا + رْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : بيزيـاران] و ـ بيزے۔

**بېژول**:- (بَې + ژَ + وَلْ) [پ (بنو) مص مت] و ـــ بوژول۔

**بېړدنګ** :- (بَې + ژ يا بې + ګْ + دْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قـاموس) اس، مـذ ، وا ، ج : بېړدنګونه] هغه کشيده شوے خورجين چې ناوې ئې د پلار د کوره ځان سره وړي۔

**بيس بيسيار**:- (بِيْ+س+بِيْ+سْ+يا+رْ) [پ ، ص] ډېـــر زيات ، پرېوان۔

**بېستون** :- (بَې + سَ + تُو + نْ) [فا ، اس ، مذ] (۱) لُغ : بې ستنې ، (۲) په ايران کښې هغه غر چې د شيرينى دپاره فرهاد سورے کړے وو ۔او د اوبو نهر ئې پـه کښې راوستے وو ۔د ايران د پخوانو بادشاهانو محلونه په دې غر کښې ؤ۔

**بېستى**:- (بَې + سَ + تَ + يَى) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] خامتا۔

**بېسر**:-(بَې + سَ + رْ) [پ ، ه ، اس ،مذ] د پوزې يو کالے ، نته ، پېزوان۔

پـه بېسر دې رنګا رنګه ټکي ګوره
په دا شان به ښائسته نۀ وي لوځکه (خوشحال)

**بېسن** :- (بَې + سَ + نْ) [ه ، اس ، مذ ، وا] د چڼو اوړۀ يا دُوړه ، وېسن۔

**بيشام** :- (بِيْ + شا + مْ) [پ (سو) اس، معر مـذ] پـه سـوات کوهسـتان کښې د يوې علاقې نوم۔

**بېشـتره**:- (بَـې + شْ + تَ + رَه) [پ ، فـا : بسـتر ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بېشترې] بستره ، بچونه۔

**بيشتي** :- (بِيْ + شْ + تِيْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج :بيشـتيان] بهشـتي ، سقه ، ې اوبۀ ور ، ماشکي ، أوبۀ وړے۔

**بيشتي توب**:-(بِيشـتي+تو+بْ) [پ ،اس،مذ] ماشکي توب، سقه توب

**بيشړ** :- (بِيْ + شَ + ړْ) [پ (سو) اس] (۱) د وړيني يا غټې کپړې نه چې رېشې راوُزي او غوټې جوړې شي (۲) پُوټسکے ، بکسکے ، لړ شان۔

**بېشړ**:- (بَې + شَ + ړْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مذ] پـه جامـه کښـې هغـه ځاے چې د ګنډلو نه پاتې وي۔

**بيشـکله** :- (بِـيْ + شْ + کَ + لَـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] خطـره، حادثه ، واقعه ، کشاله ، لانجه۔

**بيعانه** :- (بَې + عا + نَه) [ع ،اس ، مؤ] سئى ، ټپي ، قيمت۔

**بيعت** :- (بَې + عَ + تْ) [ع ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بېعتونـه] (۱) د اطاعـت لوظ (۲) لاس نيوے ، د پير مريدي۔

ـــ **اخستل** :-(اص) د فرمانبردارى لوظ او قول اخستل ، لاس نيوے کول

ـــ **کول** :- (اص) لاس نيوے کول ، مريدي اختيارول ۔

ـــ **کېدل** :- (اص) مريد کېدل۔

**بېعنامه**:- (بَې + عْ + نا+مَه) (فا تر ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بېعنـامې] قبالـه ، د څيز خرڅون رسيد ۔

**بيعه** :- (بَې + عه) [ع ، اس ، مؤ ، وا] بيه ، قيمت، سر۔

څـــې پـه بيعه، اوبُو له ډېره آبه
هرګز نشته د ګوهر شناسا دلته (کاظم خان)

**بيک** :- (بِيْ + کْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بيکونه] (۱) د کشتـى چپـو يـا څپېره (۲) د کبانو نيولويوه اله چې اتۀ سُونې لري۔

هسې زړۀ د جـــناب ولې بې دربغه
لکه کب چې په بيک ولې بې دربغه

**بېکارى** :- (بَې + کا + رَ + ى)[پ ، اس ، مؤ] د دير په علاقه کښې د يـوې درې نوم

**بیکانه**:- (بيْ + کا + نه) [ پ (سو) اس ، مؤ ، وا ، ج : بیکانې] و- بکانه.

**بېکی** :- (بَې + کَ + یَی) [ اف : پ (قاموس) اس ،مؤ ، وا] لویه چارۀ.

**بیکیانه** :- (بيْ + کَ + یا + نَه) [ پ (یوسف) اس ، مؤ، وا ، ج : بیکیانې ] و ـــ بکانه

**بېک** :- (بَې + کْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج :بېګونه ] (۱) تهیله ، بوجۍ (۲) وړوکي بکسه چې اکثر د څرمنې نه جوړه وي.

**بېک**:- (بَې + کْ) [ تُر ،ص ، مذ] (۱) لُغ : سردار ، صاحب، امیر (۲) د مغلو یو خطاب (۳) د ځینو خلکو د نوم حصه.

**بېګا** :- (بَې+ګا) [ پ ، اس،مذ ] (۱) تېره شپه ، برۍ (۲) راتلونکې شپه.

ـــــ **صبا کول** :- (اص) انې بانې کول ، بانې جوړول.

هر بېګاه وائې صباله به خولۀ درکړم

دا بېـګاه به په رحمان کله صبا کړې

**بیګار** :- (بيْ + ګا + رْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بیګارونه ] (۱) په چا بغېر د مزدورۍ په زور کار کول ، څوک د هغۀ د خوښې بغېر په کار کښې را ایسارول.(۲) د بیږې کار.

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) په نۀ زړۀ کار کول ، (۲) په بیږه کار کول.

ـــــ **نیول** :- (اص) بغېر مزدورۍ نه څوک په کار اخته کول.

**بیګـاري** :- (بـيْ + ګـا + رِيْ) [ پ ،اس ، مـذ ، وا ، ج : بیګاریـان ] (۱) د مزدورۍ نه بغېر په کار اخته کړے کس ، (۲) هغه څوک چې کار په بیږه بیږه او غلط کوي.

**بېګانه** :- (بې + ګا + نَه) [ فا ، ص ] (۱) غېر ، پردے ، ناپېژندګلو.

تر هغۀ لانېکو کار بېګانه بنۀ دے

چـې بدکار شي د چا زوے یا نمسے (رحمان)

(۲) ناواقف، ناخبر ، انجانه.

**بېګـانے** :- (بـې + ګـا+ نـے) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج :بېګـاني ، (مـؤ، وا: بېګانۍ ) د تېرې شپې ، برنے.

**بېګانۍ شپه** :- (بې+ګا+نی+شَ+پَه) [ پ ، ص ] تېره شپه ، برۍ شپه.

**بیګـر** :- (بيْ + ګَ + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مـذ ، مـؤ ، وا: بیګـره ج : بیګـرې ) مُـرغ زریـن ، د غـرۀ چـرګ چې بنې ئې ډېرې ښکلې او غوښه ئې مزېداره وي.

**بېګـر** :- (بې + ګَ + رْ) [ پ (سو) اس ،مـذ] یـو مارغـۀ چې ډېر ښـورب او غوښۀ ئې خوږه وي

**بېګرا** :- (بې + ګْ + را ) [ اف : پ (قاموس) ص ] سست ، ناراسته.

**بېګراتوب** :-(بېګرا+تو+بْ) [ اف : پ (قاموس) اس ] سستي ، ناراستي.

**بیګل** :- (بيْ + ګَ + لْ) [ پ ، انګ : بیوګل ، اس ، مذ ، وا ، ج : بیګلونه بیګلې، بیګلینه ] و ـــ بګل.

**بیګلچي** :- (بيْ + ګَ + لْ + چِيْ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: بیګلچیـان ] بیګلر ، بیګل ژغووُنکے.

**بیګلر** :- (بيْ + ګْ + لَ + رْ) [ پ ،اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بیګلران] و ـــ بیګلچي.

**بېګم** :- (بـې + ګَ + مْ) [ تُـر ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بېګمـې ] (۱) بـي بـي ، د لوے سړي ښځه یا تېر (۲) د تاش په پاڼو کښې یوه پاڼه.

**بېګمي** :- (بې + ګْ + مِيْ) [ پ ،اس ، مؤ] یو قسم غوره وریژې.

**بیګه** :- (بې + ګَه) [ ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بیګې ] د کنال او جریب په شان د مزکې د ناپ یوه اندازه.

**بېل** :- (بَې + لْ + [ پ (وز) اس ، مذ] د ګنو د ګانۍ اوږد لرګے چې غوایـان ئې ګرځوي.

**بېل**:- (بَې + لْ) [ انګ ، اس ، مذ ] ضمانت.

**په بېل خلاصبدل** :- (اص) په ضمانت خلاصبدل.

**په بېل خلاصول** :- (اص) په ضمانت خلاصول.

**بېل** :-(بَې + لْ) [ پ ،ص ، مذ (مؤ ، وا: بېله ، ج : بېلې ] جدا ، ګوښے ، یوائې ، ځان ته.

**بېلا بېل**:- (بَې + لا+ بېل) [ پ ، ص ] جداجدا ، بېـل بېـل ، ګوښـي ګوښـي ، یوائې یوائې.

**بېلات** :- (بَې + لا + تْ) [ پ ، اس ، مذ ] و ـــ بائیلات.

**بېلانـدي** :- (بَـې + لا+ نْ+ دِيْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] د کـارېز د اُوبو هغه سلسله چې یو تالاب ډک شي نو بل ته والۀ ترې جوړه کړے شي.چې هغه بل ډک شي نو بیا زمکه پرې یو ځاے خړوبولے شي.

**بېلاؤ** :- (بَې + لاؤ) [پ، اس، مذ] څرخ ، د چاړو چاقوانو د تېرۀ کولو کاڼے

**بېل بېل** :- (بَېل+ بېل) [ پ ، ص ] و ـــ بېلا بېل.

**بېلتون** :- (بَې + لْ+ تُوْ + نْ) [ پ، اس ، مذ ، وا ، ج : بېلتونونه ] جدائي ، فراق، بېلتیا ، بېل والے ، بېلښت.

چـې بېلتون ویني په سترګو اشنائي کا

د رحمان په څېر به نۀ وي بې هنر څوک

**بېلتیا** :- (بَې + لْ+ تَ + یا ) [ پ ، اس ، مؤ ] و ـــ بېلتون.

**بېلچـه** :- (بَـې + لْ+ چَه ) [ پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : بېلچـې ] د اوسـپنې او لرګي نه جوړ هغه اوزار چې خاورې او شګې پرې ټولولے یا کنستلے شي.

**بېلدار**:-(بَـې + لْ+ دا + رْ) [ فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بېلداران ] د زراعـت د محکمې هغه ملازم چې په باغونو او فصلونو دوایانې شندي.

**بېلرغو** :- (بَـې + لْ+ رْ+ غُـوْ) [ اف : پ (قـاموس) ص] اواره ګرد ، لُوچـه ، خوشه ټارے.

ـــــ **عـالم** :- (اف) اص .لُوچـه خلـک ، خوشـه ټـاري خلـک ، اواره ګرځېدونکي خلک.

**بېلښت** :- (بَې+لَ + ښْ+ تْ یا بې+ لَ + خْ + تْ) [پ ،اس، مذ ، و- بېلتون

**بېلک**:- (بَـې + لْ+ کْ ) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بېلکوُنه ] (۱) هغـه تحفـه یـا ډالـۍ چې چنغـول ئـې د خپلـې چنغلـې کـره استـوي (۲) د غشـي څوکه.

پـه یوۀ بېلک ئې نن تر هر چا به کړم

بـل ئې هم دے په صبا راتـه نومړے (خوشحال)

(۳) عېب.

**بېلګاؤ** :- (بَې + لْ+ ګاؤ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] خرڅ.

**بېلګونـه** :- (بَـې + لْ+ ګُـوْ+ نَـه ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج: بېلګونې ] یوه مُضره او خطرناکه دانه چې د بنده په وجود راخېژي.

ـــــ **په لګېدل** :- (اف) اص.بېلګونه پرې ختل ، بېلګونې وهل.په بدن خطرناکه دانه راختل.

ـــــ **پرختل**:- (اف) اص.و ـــ بېلګونه په لګېدل.

**بېلګونې وهل** :- (اف) اص.و ـــ بېلګونه په لګېدل.

**بېلګه** :- (بې + لْ+ ګَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بېلګې ] بولګه ، د غلا د مال څۀ پته لګته ، بلګه.

**ببلل** :- (بَې + لَ+ لْ) [ پ ، مص ، مت ] و ـــ بائلل .

**ببلل**:- (بَې + لَ+ لْ) [ اف : پ (قـاموس) مـص مـت] امـاده کـول ، (دا ټکـے اوس متروک دے).

**ببللے** :- (بَې + لْ+ لَے) [ اف : پ (قاموس) ص ] اماده ، تیار.

**بېلنس** :- (بَې +ل +نْ +سْ) [ انګ،اس، مذ ] (۱) تله (۲) بقاي، باقي، پاتې

**بېلنګی** :- (بِيْ +لْ + نْ + ګِـی) [ پ (پکلی) اس ص مؤ ] و ـــ بګوله متـل :- "لنګي مه شي بېلنګی .د شوملو د خواست نه دي اوويستم.

**بېلنه** :- (بَې + لْ + نه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : بېلنې ] بائلنه ، لرېدنه ، بائلودنه.

**بېلنه**:-(بَې+لْ+نه ) [ اف :پ (قاموس ) اس،مؤ ] جدائي،لرې والے،فاصله .

**بېلنے** :- (بَـې + لَ + نَـے ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : بېلنـې ] وبلنے ، شين شوبے ، پودينه.

**بېلواله** :- (بَې + لْ + وا + لَـه ) [پ ، اس ، مؤ] (۱) جدائي ، فـراق ، بېلـوالے (۲) لرې والے ، فاصله (۳) بې اتفاقي.

**بېلوالے** :- (بَې + لْ + وا + لَـے ) [ پ، اس ، مذ] و ـــ بېلواله.

**بېلوتې** :- (بَـې + لُـو + تې ) [ پ (شن) اس مـؤ ، ج ] اوتې بـوتې ، الـوتې ، کاواکې

**بېلودنه** :- (بَې + لو + دْ + نَه ) [ پ ، حمص ] و ـــ بائلات.

**بېلول** :- (بَې + لَ + وْ + لْ ) [ پ ، مص مت ] جدا کول ، لـرې کـول ، بېلتـون راوستل.

**بېلون**:-(بَې + لُو + نْ ) [ انګ ، اس،مذ ، وا] غُباره ، لويه پوکنۍ، ډبوزه.

**بېلونګ** :-(بَې + لْ + وَ + نْ + ګْ ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـ بېلونه.

**بېلونه** :- (بَې + لَ + وْ + نَه ) [ پ ، حمص ] جدا کونه، لـرې کونـه ، بېلتـون راوستنه.

**بېلوُونکے** :- (بَـې + لَ + وُوْ + نْ + کَـے ) [ پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: بېلوُونکي ] جدا کوُونکے ، لرې کوُونکے ، بېلتون راوستونکے.

**بېله**:- (بې + لَه ) [ ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بېلې ] (۱) د لرګي يا د اوسپنې لويه ناوه چې د نهر يا لښتي دپاسه د اُوبو بوولو دپاره ايښود ے شوي وي (۲) د اوبو هغه واله يا وبلهٔ چې د سيند نه بېله شوې وي.

ببرې ګرځي په بېله کښې

پـه قـلزم ګرځي جهاز (خوشحال)

(۳) ټاپو ، اوچکے ، د سيند په مېنځ کښې اوچه مزکه (۴) جاله ، د ونې تنه چې منځ ئې ډډ کړے شي او د کشتۍ په ډول استعمالېږي.

**بېلـه** :- (بَـې + لَـه ) [ پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : بېلـې ] يـوائې ، ځـان تـه ، ګوښې ، جدا ، بې ملګريه.

**بېله بېله** :- (اص) يوائې يوائې ، ځان ځان له ، ګوښې ګوښې.

**بېلهمـه** :-(بَـې + لْ + هَ + مَـه ) [اف : پ (قـاموس) اس ] ناڅاپـه ،اچانـک ، ناګمانه ، د نيامه.

**بېلې**:- (بَې + لې ) [ پ ، اس ، مذ ] فرق ، تميز ، بېلتون.

ـــ **کول** :- (اص) فرق کول ، تميز کول ، بېلتون کول.

**بېلېدل** :- (بَې + لې + دْ + لْ ) [ پ، مص لا] جُدا کېدل ، يوائې کېدل ، ځان ته کېدل ، ګوښې کېدل.

**بېلېدنګ** :-(بَې+لې+دْ+ نْ + ګْ ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـ بېلېدنه.

**بېلېدنـه**:- (بَـې + لـې + دْ + نَـه ) [ پ ، حمـص ] بېلېـدهٔ ، جـدا کېـدهٔ ، بېلېدنګ ، ګوښې کېدنه.

**بېلېـدونکے** :- (بَـې + لـې + دُوْ + نْ + کَـے ) [ پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : بېلېدونکي ] جدا کېدونکے ، ګوښے کېدونکے.

**بېلېدهٔ** :- (بَې + لې + دَهٔ ) [ پ ، حمص ] و ـــ بېلېدنه.

**بـيم** :- (بِيْ + مْ ) [ پ ،ه : بين ، اس، مـذ ، وا، ج : بيمونـه ] (۱) بـين ، د بانسرۍ په شان يو ساز (۲) د درُوزې يا کړکي نه جوړ هغه بين چې پاړو ئې د مار نيولو دپاره ږغوي.

**بيمار**:- (بِيْ + ما + ر) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : بيماران (مؤ ، وا : بيمـاره ، ج : بيمارې) ] (۱) ناروغه ، ناجوړه ، ناخوښه ، رنځور

يـو دم پورته کړه چشمان د ناز له خوابه

ستا د سترګو په شان خواب کله بيمار کا (کاظم خان)

(۲) غمجن ، په زړهٔ نابناد ، دلګير (۳) عاشق (۴) علتي ، عادتي.

**بيمارتوب** :- (بِيْ + مار + تو + بْ ) [ پ ، اس ، مؤ ] و ـــ بيماري.

**بيمارتيا** :- (بِيْ + ما + رْ + تْ + يا ) [ پ ، اس ، مؤ] و ـــ بيماري.

**بيمارول** :- (بِـيْ + مـا + رَ + وْ + لْ ) [ پ ، مـص مـت ] رنځـورول ، ناروغـه کول ، ناجوړول.

**بيمارونه**:- (بِيْ + ما + رَ + وْ + نَه ) [ پ ، حمص ] رنځورونه ، ناروغه کونه ، ناجوړه کونه.

**بيماروُونکې** :-(بِيْ +ما+رَ + وُوْ + نْ + کَے ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : بيماروُونکي ] رنځوروُونکے ، ناروغه کوُونکے ، بيماروُونے.

**بيمـاروُونے** :- (بِـيْ + مـا + رَ + وُو + نَـے ) [ پ ، اس فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : بيماروُوني ] و ـــ بيماروُونکے.

**بيماري** :- (بِيْ + ما + رِيْ ) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : بيمارۍ ، بيماريانې ] (۱) رنـځ ، ناروغتيـا ، بيمارتيـا ، بيمـارتوب (۲) غمجنـوالے (۳) عاشقي ، (۴) علت ، عادت.

بيماري به د ترګس کا شيدا ورکه

کـــه ئې راشي د نګار دارالشفاء (کاظم خان)

**بيمارېدل**:- (بِيْ + مـا + رې + دْ + لْ ) [ پ ، مـص لا] رنځورېـدل ، ناروغـه کېدل ، ناجوړه کېدل.

**بيمارېدنـه** :- (بِـيْ + مـا + رې + دْ + نَـه ) [ پ ، حمـص ] رنځورېدنـه ، بيمارېدهٔ ، ناروغتيا.

**بيمارېـدُونکے** :- (بِيْ+مـا+رې+ دُوْ + نْ + کَـے ) [ پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : بيمارېدونکي ] رنځورېدُونکے ، ناروغه کېدونکے ، بيمارېدُونے.

**بيمارېـدونے** :- (بِـيْ + مـا + رې + دُوْ + نـے ) [ پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: بيمارېدُوني ] و ـــ بيمارېدونکے.

**بيمارېدهٔ**:- (بِيْ + ما + رې + دَهٔ ) [ پ ، حمص ] و ـــ بيمارېدنه.

**بيمـه** :- (بِـيْ + مَـه ) [ فـا ، اس ،مـؤ ، وا ، ج : بيمې ] د مـال يـا د ځـان د نقصـان ذمـه واري ، د څـهٔ پيسـو پـه بـدل کښې کمپنۍ تـه سپارل ، انشورنس.

**بين**:-(بِيْ + نْ ) [ ه،اس،مذ ، وا ، ج : بينونه ] (۱) و ـــ بيم (۲) سو ـــ بوئين

ـــ **باجه**:-(اص) يوخاص قسم باجه چې د باد مشک ورسره لګېدلے وي . يو څو سُرنا پکښې وي او په خولهٔ ږغولے شي .پائپ بېنډ.

ـــ **ږغول** :- (اص) (۱) د بيم ساز شروع کول (۲) د مـار نيولـو يـا تماشې دپـاره د پـاړو بـين وهـل (۳) د ماشـوم ژړل (۴) چـا تـه د شـېطانۍ او لمسون خبرې کول.

ـــ **وهل** :- (اص) و ـــ بين ږغول.

**بينـا**:- (بِـيْ + نـا ) [ فـا ، اس ، ص ، مـذ ، مـؤ] (۱) ليـدُونکے ، کتـونکے ، سترګه ور

د غـفلت لېچن لېـــمهٔ به دې بينا شي

که د يار د کوڅې خاورې تهٔ ځانکو کړې (رحمان)

(۲) هوښيار ، عقلمند ، پوهه.

ـــ **سترګې** :- (اص)غړېدلې سترګې ، ليدونکې سترګې.

ـــ **کول** :- (اص) (۱) سترګې ورکول ،(۲) پوهول.

ـــ **کېدل** :- (اص) (۱) د سترګو خاوند کېدل ، نظر لګېدل.(۲) پوهېدل

هوښیارېدل.

چې په خپل عیب باندې بیناشي
سړے هـــــله درست دانا شي (خوشحال)

**بینائي** :- (بِيْ + نا + ئِيْ) [فا ، اس ، مؤ وا] (۱) د سترګو نظر ، د سترګو رڼا (۲) هوښیاري ، هوښیارتوب.

**ـــــ تلل** :- (اص) ړندېدل ، د سترګو نظر ختم کېدل.

**ـــــ لرل** :- (۱) د سترګو نظر لرل (۲) پوهه او عقل لرل.

**بېنــت** :- (بَــې + نِ + تْ) [پ ، اس ، مــذ ، وا ، ج : بېنتونــه] (۱) لښــته چابــک ، کــوړه ، تــراټ ، متروکــه (۲) د بــانس هغــه پوســتکي چــې کرسۍ پرې پېرلے شي.

**بېنتونه لګول** :- (اص) کوړې لګول ، د سنګین جرم په سزا کښې چاته په بېنتونو وهلو سزا ورکول.

**بینجو**:- (بِيْ + نْ + جُو) [پ ، اس ، مذ] یو ساز.

**بیند** :- (بَ + يَ + نْ + دْ) [پ ، اس ص ، مذ (مؤ ، وا : بینده ، ج : بیندې] و ــ بهاند.

**بېنډ** :- (بَــې + نْ + ډ) [انګ ، اس ، مــذ ، وا ، ج : بېنډونــه ، بېنډینــه] د بین باجې او د بیګلونو ژغولو ټولے.

**بېنډي** :- (بَې + نْ + ډِ + يْ) [پ ، ه : بهنډي ، اس ، مؤ] یوه ترکاري یو قسم سبزي

**بېنش**:- (بَې + نْ + شْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بېنشونه] شهتیر.

**بېنکر** :- (بَې + نْ + کَ + رْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : بېنکران] د بینک کاروبار کوُونکے ، د پیسو ټکو کاروباري.

**بینګ** :- (بِيْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : بینګونه] د لوخې جرړې یا بېخ.

**بینګړي** :- (بِيْ + نْ + ګْ + ړَ + ی) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] یو قسم ترکاري یا سبزي.

**بېنګڼ**:- (بَې + نْ ګَ + ڼ) [پ ، ه : بېنګن ، اس ، مذ] و ــ باتینګړ.

**بېنوا** :- (بَې + نَ +وا) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] غرئیز وابنهٔ چې سپین ګل کوي.

**بېنه** :- (بَې + نَه) [اف : پ (قاموس) ص] ظاهر ، څرګند ، ښکاره ، دا ټکے د اینه سره یو ځاے وئیلے شي. لکه اینه پر بېنه.

**اینه پر بېنه ورته وئیل** :(اص) صفا صفا ورته وېنا کول، چا ته پاکه خبره کول

**اینه پر بېنه ورښودل**:- (اص) صفا ورته څرګندول ، څرګنده نخښه ورکول.

**بیني**:-(بِيْ+نِيْ) [فا ،اس،مؤ ، وا ، ج : بینۍ] (۱) پوزه (۲) د دروازې یا ور د مضبوط پورې کولو دپاره د یوې تنبې دپاسه یوه تخته لګېدلې وي چې هغه دویمه تنبه ورسره تکیه شي. دې ته بیني وئیلے شي.

**بیني جوي** :- (بِيْ + نِيْ + چُوْ + يْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] سربلانړے ، سربانډے ، لوادره.

**بیو** :- (بِ + یو) [پ ، اس ، ندا] د ساتلي بلبل د رابللو اواز.

**بېوان**:-(بَېْ + وا +نْ) [پ (بلوچستان) اس، مذ ، وا ،ج : بېوانونه] و -بیابان

**بیور**:-(بْ +یو رْ) [پ،اس،مذ] مشغولا،روزګار،ذکر،بیان، مجلس.

د ملوکانو صحبت بل اور دے
د اور سکروټه د دې بیور دے (خوشحال)

**بیورو** :- (بِيْ + وْ + رو) [انګ ، اس ، مذ] اداره.

**بیوره** :- (بِيْ + وْ + رَه) [اف : پ (قاموس) اس] ظلم زیاتي.

**ـــــ کول** :- (اص) ظلم زیاتي کول.

**بېوره**:-(بې + وْ + رَه) [اف : پ (قاموس) ص] صفا ،ظاهر ، ښکاره.

**بیول** :- (بَ + يَ + وْ + لْ) [پ ، مص مت] و ـــــ بهول.

**بیول** :- (بِيْ + وْ + لْ) [پ ، مص مت] و ـــــ بوتلل.

**بیولے** :- (بَ + يَ + وْ + لَے) [پ مف ، مذ ، وا ،ج : بیولي] بهولے.

**بیولے**:- (بِيْ + وْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : بیولي] بوتلے.

**بیوڼ** :- (بْ + یو + نْ + ړْ) [پ (ب ، خ) اس ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا : بیوڼه ، ج : بیوڼې)] و ـــــ بهاڼ.

**بیوڼګے** :- (بْ +یو+نْ +ړْ+ګے) [پ (ب، خ) اس ، تصغیر، مذ، وا ، ج : بیوڼګي (مؤ وا ، بیوڼګۍ)] ورکوټے بهاڼ ، د اسپې وړوکے بچے.

**بیونګ**:- (بَ + يَ + وْ + نْ +ګَ) [اف ، پ (قاموس) حمص] و ــ بیونه.

**بیونه**:- (بَ + يَ + وْ + نَه) [پ ، حمص] بهونه.

**بیونه** :- (بِيْ + وْ + نَه) [پ ، حمص] بوتلنه.

**بیوونکے** :-(بَ + يَ + وُوْ +نْ + کَے) [پ ،اس ،فا ،ع ،مذ ،وا ،ج: بیوُونکي] بهوونکے.

**بیوُونکے** :-(بِيْ +وُوْ +نْ +کَے) [پ،اس فا ع، مذ ،وا ،ج :بیوُونکي] بوتلونکے

**بیوهٔ**:- (بِيْ + وَهٔ) [پ ، حمص] بیونه ، بوتلنه.

**بیه**:- (بَ+یه) [پ،ع : بیع ، اس،مؤ،وا ، ج : بیې] بیعه، قیمت ، سر.

**ـــــ اچول** :- (اص) قیمت کول ، قیمت مقررکول ، بیه پر ایښول.

**ـــــ پر ایښول** :- (اص) و ـــــ بیه اچول.

**ـــــ نهٔ درلودل** :- (اص) (۱) بې قیمته کېدل ، د بیعې جوګه نهٔ پاتې کېدل (۲) ډېر قیمتي کېدل،دومره قیمتي کېدل چې د بیعې ئې هډو اندازه نهٔ لګي.

**په بیه اخستل**:-(اص) په قیمت اخستل ، په پیسو کول ، په بیه رانیول.

**په بیه رانیول** :- (اص) و ـــــ په بیه اخستل.

**په بیه ورکول**:- (اص) په قیمت خرڅول.

**له بیه اچول** :- (اص) بې قیمته کول ، خرابول.

**ـــــ کېدل** :-(اص) قیمت ایښودلے کېدل،د خرڅون دپاره قیمت مقررېدل

**بېهو** :- (بَې + هُوْ) [اف :پ (قاموس) ص] (۱) وحشي ، ځناور ، غرڅنے (۲) تښتېدلے

**ـــــ بېهو کېدل** :- (اف) اص. (۱) څهٔ کار په لېوتتوب او نابلد تیا سره کول ، (۲) د ځناورو په شان حرکت او کار کول.

**بېهودګي** :-(بې + هُوْ +د +ګِيْ) [فا ،اس،مؤ] لُوچه توب ، بدمعاشي ، بد تهذیبي.

**بېهوده**:- (بَې + هُوْ + دَه) [فا ، ص ، مذ] (۱) بې فائدې ، عبث ، فضول (۲) بدمعاش ، لُوچه ، بې تهذیبه (۳) ناجایز.

**بېهوالے** :- (بېهو+وا +لَے) [اف : پ (قاموس) اس،مذ] ځناورتوب ، وحشي توب.

**بیېدل** :- (بَ + یې + دْ + لْ) (۱) و ـــــ بهېدل (۲) وز. تلل ، کډې کول د یو ځاے نه بل ځاے ته تګ.

**بیېدنګ** :- (بَ +یې +دْ +نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ــ بیېدنه.

**بیېدنه**:- (بَ + یې + دْ + نَه) [پ ، حمص] بهېدنه ، بهېدهٔ ، بیېدهٔ.

**بیېدُونکے** :- (بَ + یې + دُو + نْ +کَے) [پ،فاع،مذ ،وا ،ج : بیېدُونکي] بهېدونکے.

**بیېدهٔ** :-(بَ + یې + دَهٔ) [پ، حمص] (۱) بهېدنه، بیېدنه (۲) جریان.

**بییر** :- (بَ + یِيْ + رْ) [پ ، اس،مذ ،وا ، ج : بییُرونه] (۱) بهیر ، قافله (۲) سو. بهېدل ، سېلاب ، بې واره اوښکې.

◈◈◈

# پ

**پ** :- (پې) [حر ، مؤ ، وا ، ج : پې ګانې] د پښتو ، فارسي ، اردو الف بې دريم توری (تکی) چې نوم ئې پې دی.دا توری اکثر د ف په ځای هم وئيلی کېږي.لکه فکر پکر.

**پا** :- (پا) [اف : پ ، اس ، مؤ ، وا] (۱) پهه ، ملهم ، پټی ، د مالش نرم دارو ، پايه (۲) پښه.

رنګينه جامې اوغوستې زرنګار دی
سره درسته تجلي وه پاند سره خوشحال

**پابسته** :- (پا + بَ + سْ + تَ) [فا ، ص] (۱) د پښو نه تړلی ، پابند ، مجبور ، ګرفتار و بندي (۲) تابعدار.

دا جهان قصاب خانه کړه خدای و ماته
پابسته ولاړ په غولي د قصاب يم رحمٰن بابا

**ـــ کول** :- (اص) (۱) د پښو نه تړل ، د چا پښې تړل ، ځولنې وراچول (۲) څوک په څه کار کولو يا نۀ کولو مجبوره کول ، پابند کول.

**ـــ کېدل** :- (اص) (۱) د پښو نه تړلی کېدل ، ځولنې وراچول کېدل (۲) پابند کېدل ، مجبورېدل (۳) ګرفتارېدل ، بنديوانېدل.

**پابند** :- (پا+ بَ + نْ + دْ) [فا ، ص ، مذ ، وا] (۱) پائې بند ، د پښو نه تړلی ګرفتار ، (۲) تابع (۳) مجبور (۴) په څۀ لوظ ټينګ پاتې کېدونکی.

"لکه دا هغه د نمونځ پابند دی"

**ـــ کول** :- (مص تر مت] (۱) د پښونه تړل (۲) د څۀ کار په کولو يا نۀ کولو مجبوره کول (۳) ګرفتارول (۴) د وادۀ ببړی وراچول.

**ـــ کېدل** :- (مص تر ، لا) (۱) د پښو نه تړلی کېدل (۲) د څۀ کار په کولو يا نۀ کولو مجبوره کېدل (۳) د څۀ کار په کولو يا نه کولو ټينګ او کلک پاتې کېدل (۴) د وادۀ ببړی وراچولی کېدل.

**پابندتيا** :- (پا + بَ + نْ + دْ + تْ + يا) [پ ، اس ، مؤ] و ــ پابندي.

**پابندِ شريعت** :- (پا + بَ + نْ + دِ ـ شَ + رِيْ + عَ + تْ) [فا تر ، ص] د شرع پابند ، په شرع ټينګ.

**پابندَول** :- (پا + بَ + نْ + دَ + وَلْ) [پ ، مص ، مت] و ــ پابندکول.

**پابندونه** :- (پا + بَ+ نْ + دَ + وُ + نَه) [پ ، حمص] (۱) د پښو نه تړنه (۲) په څۀ لوظ ټينګونه (۳) په څۀ کار مجبورونه (۴) د وادۀ په ځولنو تړنه.

**پابندوُونکی** :- (پا+ بَ + نْ + دَ + وُوْ +نْ + کَی) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پابندوُونکي] (۱) د پښو نه تړُونکی (۲) په څۀ لوظ ټينګوونکی ، (۳) په څۀ کار مجبوروُونکی.

**پابندي** :- (پا + بَ + نْ + دِيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پابندياني يا پابندۍ] (۱) پابندتيا ، اطاعت ، فرمانبرداري ، په څۀ حکم باقاعده قائم پاتې کېدل (۲) بندېز ، ممانعت

"لکه د وسلې په ګرځولو پابندي لګولې ده"

**ـــ اوچتول**:-(پ، مص ،تر) بندېز لرې کول ، د منع کړي کار اجازت ورکول

**ـــ سختول** :- (پ مص تر) پابندي ډېره زياتول ، بندېز زياتول.

**ـــ سختېدل** :- (پ، مص تر) بندېز يا پابندي زياتېدل.

**ـــ کول** :- (پ مص تر) په څۀ حکم يا قاعدې يا په کار قايم پاتې کېدل لکه :- " هغه د وخت پابندي کوي "

**ـــ لرې کول** :- (پ مص تر) و ـــ پابندي اوچتول

**ـــ لګول** :- (پ مص تر) د څۀ کار کولو ممانعت ول ، بندېز کول.

**پابندېدل** :- (پا + بَ + نْ + دې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] (۱) د پښو نه تړلی کېدل (۲) په څۀ لوظ ټينګېدل (۳) په څۀ کار مجبورېدل (۴) د وادۀ په ببړو تړلی کېدل.

**پابندېدنه** :- (پا + ب+ نْ + دې + دْ + نَ) [پ ، حمص] (۱) د پښو نه تړلی کېدنه (۲) په څۀ لوظ ټينګېدنه (۳) په څۀ کار مجبورېدنه (۴) وادۀ کونه.

**پابندېدُونکی** :- (پا + بَ + نْدې + دُوْ + نْ + کَی) [پ ، مف ، مذ ، وا : ج : پابندېدونکي] (۱) د پښو نه تړلی کېدونکی (۲) په څۀ لوظ ټينګېدونکی (۳) په څۀ کار مجبورېدونکی (۴) د وادۀ په ببړو تړلی کېدونکی.

**پابندېدۀ** :- (پا + بَ + نْ + دې + دۀ) [پ ، حمص] و ــ پابندېدنه.

**پابوس** :- (پا + بو + سْ) [(فا ، فا ع ، مذ] (۱) پښې ښکلونکی ، ادب کونکی (۲) خوشامدي ، خوشامدګری ، چاپلوس.

**پابوسي** :- (پا + بو + سي) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پابوسۍ] (۱) پښې ښکلول ، ډېر زيات ادب کول ، احترام ، عزت ، تواضع (۲)خوشامد ګري ، چاپلوسي.

**ـــ کول** :- (پ، مص تر) (۱) د چا پښې ښکلول ، د چا په پښو پرېوتل ، د چا ډېر عزت او احترام کول (۲) خوشامندي کول.

**ـــ له تلل** :- (پ ، مص تر) د چاد پښو ښکلولو له تلل ، مجازاً د چا پير يا مشر سلام دپاره تلل.

**پا به رکاب** :- (پا + بَ + رِ + کا + بْ) [فا ، ص] (۱) په رکاب کښې پښه اېښودلی ، روانېدو ته تيار (۲) مرګ ته نژدې.

هره نوې مياشت دغه اشارت کاندې
چې شيرين عمر ددې پائې به رکاب معزالله

**پـابېنۍ** :- (پا + بې + نْ + رَ +ئ) [پ ، اس معر ، مؤ] د صوابۍ په تحصيل کښې د يو کلي نوم .د پښتو اکېډيمۍ باني مولانا عبدالقادر صاحب مرحوم په دې کلي کښې زېږېدلی ؤ.

**پاپا** :- (پا + پا) [انګ ، اس ، مذ ، وا] (۱) پوپ ، د رومن کيتهولک عيسايانو لوی پېشوا ، چې په روم ښار کښې اوسي .پاپائے رو م (۲) بابا ، داجي ، ابا ، باباجي.

**پاپا** - (پا + پا ) [ پ (ب ، خ ) اس ، مؤ] وارهٔ ماشومان ډوډۍ ته پاپا وائي

**پاپاپا** :-(پا +پا+ پا ) [ پ ، اسم ، صوت ] د چـرګورو د رابللو اواز ، تیتـي ، کت کت

**پاپاجي** :- (پاَ + پا + جِيْ ) [ پ ، اس ، مذ] داجي ، بابا ، ابا ، باباجي ، د پلار یا د مشر دپاره نوم د عزت.

**پـاپتے** :- (پـا + پَ + تَـے ) [ پ (سـو) ص، مـذ ، وا، (مـؤ ، وا، پـاپتۍ ) مندرے ، چیت ، پست قد ، بونا .

**ـــــ جوړول** :- (سو ) د ماشومانو پـه لوبـه کښې د یـو چیت هلـک نـه د تماشې څیز جوړول.کله چې په نورو هلکانو کښې کوم هلک ددهٔ سره اولګي نو هغه بیا پاپتے جوړ کړے شي.

**پاپټکـه** :- (پـا + پَ + ټْ + کَ ) [ اف : پ (قـاموس) اس، مـؤ ، وا ، ج : پاپټکې ] د غرئيز لاله جرړې غوټه یا پیاز .

**پـاپړکے** :- (پـا + پ + رْ + کَـے ) [ پ ، اس ، مـذ ] د پـاپړو یـا د پـاپړ اسم تصغیر ، وړوکے شان پاپړ (۲) د ډوډۍ هغه حصه چې ډیره نرۍ وي. (۳) د څهٔ څیز نرے پرچ ، (۴) نرے توتنکے.

**پاپره** :- (پا + پْ + رَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] پاپړه ، شاه تره ، یو مشهور بوټے چې په دارو کښې استعمالیږي.

**پـاپړ** :- (پـا + پَ + ړْ ) [ پ ، ه ، اس ، مـذ ، وا ، ج ] د مهـو یـا د مئیـو یـا د چڼو د اوړو ډیر نرۍ مصاله دار چپاتے ، چې تېلو یـا غـوړو کښـې تلولے شوے وي.یا په سکروټو پوخ کړے شـوے وي. (۲) مجازاً د کاغذ په شان ډیر نازک او نرے څیز.متل: سل پاپړ د یو لوړ.

**پاپړکے** :- (پا+ پَ +ړْ + کَے ) [ پ ،اس ، مذ ، وا ، ج : پاپړکي] پترے

**پاپړه** :- (پا + پْ + ړَ ) [ پ ، اس ، مؤ] (۱) و ـــ پاپره (۲) پاپړي.

**پـاپړي** :- (پـا + پْ + ړي ) [ پ (سـو) اس ، مـؤ ، وا] (۱) د اوړو نـه جـوړه شوې غوړه او تره چوري.پنجېري (۲) د ګوړې د پټ نه جوړ شوي کرېبېدُونکي خوږارهٔ چې لیسدار وي.ژاوله ، پاپړه.

**پاپکه** :- (پا + پَ + کَه ) [ اف :پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : باپکې ] یو قسم وابنهٔ چې د جرړې نه ئې ژاوله یا ژوغله (ساجق) ویستے شي.

**پـاپلي** :-(پـا+پْ + لَـے ) [ پ ، اس ، مـؤ ] (۱) د ماشـوم پـه ړومبي خـل پـل اخستـل ، پـه ړومبي ځـل قدم اخستـل او د ګرځېدو چل زده کـول . (۲) پنیاپل کول ، په رو رو او په ویره قدم اخستـل ، ډیر پـه احتیـاط قدم اخستـل."پاپلي پل واخله پل دې بختور شه.چې یو پورتـه کړې پسې بل واخله." دا الفاظ میندے خوښندې ماشوم تـه د خوشحالۍ یا مد هغهٔ زړهٔ ور کولو د پاره وائي.

**پاپلي پاپلي** :- (پ ، اس ، صو ) هغې ماشوم ته د قدم اخستو دپاره وئیلے شي چې نوے نوے د ګرځېدو چل زده کوي.

**پـاپلين** :- (پـا + پْ + لـي + نْ ) [ انـګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پاپلینونـه ] یـو قسم سُوتي کپړه یا رخت.

**پاپن خېل** :- (پا + پ + نْ + خې + لْ ) [ پ ، اس ، معر ، مذ (مؤ : پاپن خېله ، ج : پاپن خېلې ) ] پاپین خېل ، د پښتنو د یو خېل نوم ، چې اکثر خلک ئې سوات کښې اباد دي.چې ورته د پایند میاں ګان وائي.

**پاپو** :- (پا + پو ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا] ابۍ ، مشرې ښځې تـه د احترام پـه ډول وئیلے شي ، ترور.

**پـاپوجي** :- (پـا + پـو + جـي ) [ پ (سو) اس، مـؤ ، ور] پپـو ، ببـو ، تـرور ، ماسي ، اګو.

**پاپوټکي** :- (پا + پُو + ټْ + کَې) [ پ (سو ) اس ، تصغیر ، مذ ،وا] د پـاپټې اسم تصغیر ، ډیر چیت ، بې حده ټیټ.

**پاپوټکر** :- (پا+ پـو + ټْ + کْ + رْ ) [ اف : پ (قاموس) ] ربښتینے او راست مند سړے.

**پاپوش** :- (پا + پو + شْ ) [ فا ، اس، مذ ] پیزار ، پاپوښ ، کپۍ.

**پاپوښه** :- (پا + پو + ښَه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاپوښې ] (۱) پیزار پڼه ، کوښه (۲) سپک او پرېوتے شے.

**پاپوکه** :- (پا + پو + که ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د زیرې د بوټي جرړه یا ونې ، وبخ.

**پاپوکے** :-(پا +پُو + کَے ) [ پ (سو) اس ،مذ] د وړو ماشومانو پڼې ، پاپۍ.

**پاپۍ** :- (پا + پَ + ی) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاپۍ ګانې ] و ـــ پاپوکے. "لکه" په پاپو راځي چې پایئ دې سترې نهٔ شي".

**په پایو کښنول** :- د ماشوم د وړو یا لویو بولو دپاره په پڼو کښښنول.

**پـاپي** :- (پـا+ پِيْ ) [ ه ، اس ، مـذ ] ګُنهګـار ، بـدکار ، بـدچلن ، بـد راه ، بدعمله ، بې لارې.

**پاپین خېل**:- (پا + پِيْ + نْ + خې + لْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا] و ـــ پاپن خېل.

**پات** :- (پا + ت) [ پ (ب، خ ) اس، مذ] پاتي ، پېتي ، پاخهٔ شوي دال. "لکه "پوخ چې ورته پات کړئ.

**پاتا** :- (پا + تا) [ پ ، ع ، فاتحـه ، اس ، مؤ ، وا، جم : پاتاګـانې ،پاتـاوې (اف)] مړي پسې لاس اوچتول، مړي پسې دُعا کول ، لاس نیوه کول.

**ـــــ اخستل** :- (پ ، مص تر ) فاتحه اخستل ، د مړي د کور والـو د عُذر کوونکو سره دعا دپاره لاس اوچتول.

**ـــــ کول** :- (مص تر ) د مړي فاتحه کول ، مړي پسې د دعـا دپاره لاس اوچتول ، مړي ته دعا کول ، لاس پورته کول ، د مړي لاس نیوه کول.

**ـــــ له تلل** :- (مص تر ) د مړي دعـا لـه تلـل او د هغهٔ خپـل خپلوانو او وارثانو ته لاس اوچتولو له تلل ، د چا لاس نیوي ته تلل .

**ـــــ ورکول**:-(پ ، مص تر ) (۱) پاتا کول (۲) د جُمعې پـه شپـه د مړي پـه روح د مابنام په ډوډۍ فاتحه لوستل ، او جومات لـه لېږل ، مابنـامے کول.

**په پاتا کښښناستل** :- (پ مص تر ) د مړي د خپل خپلوانو سره غمرازۍ کښـې کښښناسـتل ، پـه غـم کښـې شـریکېدل ، لاس نیـوي تـه کښښناستل.

**پاتا** :- (پا + تا ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پاتاګان ] مشر یا پلار.

**پاتا لوژسټ** :- (پـا + تـا + لـو + ژِ + سْ + ټْ + یـا جِ + سْ + ټ ) [ پ (روسي قـاموس) انـګ : پتهالوجسـټ ، اس ، ص مـذ] پېتالوجسـټ ، د مرضونو د تشخیص ماهر .

**پاتـالوژي** :- (پـا + تـا + لـو + ژِيْ یـا جِيْ ) [ پ (روسي قـاموس) انـګ ، پتهالوجي ، اس ، مؤ] د مرضونو د تشخیص علم ، پاتولوژي.

**پاتالوژیکي** :- (پا + تا + لو + ژِيْ + کِيْ یا جي + کي ) [پ (روسي قـاموس) انګ : پاتالوجکي ، اس ، مؤ] د مرضونو د علم سره متعلق ، د علم الامراض سره تړلے ، پاتولوژیکي.

**پاتان** :- (پا+ تا + نْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مـذ] اندرپایـه ، پارچنـګ ، پوړۍ ، نندرپایه ، درم پایه .

**پاتاڼ** :- (پا + تا + ڼْ ) [ پ (ب، خ ) اس ، مذ ، وا، ج : پاتاڼونه ] لار ، پتڼ.

**پاتاؤ** :- (پا + تا + ؤ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) هغه لـوے نهر چې د قندهار ښار په مېنځ کښې تیرېږي.(۲) هر لـوے نهر ، لویه والهٔ.

**پاتخه** :- (پا + تَ + خَه ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ، وا ، ج : پـاتخې] د اندر پایې پاتکے ، د پارچنګ دستکے.

**پـانزه** :- (پـا + نْ + زَه ) [ اف ، پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پـانزې ]

پترے ، د زخم دپاسه نرۍ پرده.

**پاتر**:-(پا + تَ + رْ ) [ پ (ب، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : پاترونه ] د مولۍ پاڼه

**پاتراڼي** :- (پا + تْ + را + ڼي ) [ پ (ب ، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : پاترۍ] د غنمو یا د چڼو فصل د کروندے نه پس او د راټوکېدلو نه وړاندې د باران کېدلو په وجه د زمکې مخ سختېدل چې د غلې تېغې نه راوځي.

—— **کېدل** :- (پ (ب ، خ) مص تر ) و —— پاتراڼي.

—— **کېلول** :- (پ (ب ، خ) مص ، تر ، په کرلي شوي تخم د باران کېدلو نه پس د زمکې پاس پاس ماتول ، دغه شان د غنمو یا چڼو تېغې په اسانۍ سره ټوکېږي.

**پاترې**:- (پا + تْ +رې ) [ پ (گن) اس، مذ ،وا، ج : پاترې] د خاورې بنانک.

**پاترې** :- (پا+ تْ + رې ) [ پ (سو) اس ، مذ ، وا ، ج : پاترۍ ] (۱) د گټې نه په اسانه رېژېدونکې حصه (۲) د تندې ، غم یا بیمارۍ له وجې په شونډو پترے جوړېدل (۳) د مهاشېر یا کېرمې مهي په څرمن جوړ شوي د سیپۍ په رنگ پترې.

**پاترې پاترې** :- (پا + تْ + رې + پا + تْ + رې ) [ پ ، اس ، مر ، مذ ] پېړکې پېړکې کېدل ، پترې پترې کېدل ، لکه شونډې ، مزکه یا شېل لړگے پترې اونیسي.

**پاتنده** :- (پا + ت + نْ + دَه ) [ اف : پ (قاموس) ص ] پائنده ، پاتې کېدونکے ، باقي.

**پاتو** :- (پا+ تو) [پ، اس، مؤ] (۱) د سور رنگ یو چینجے، بې بې پاتو بخملۍ، سره ناوې، (۲) د مچ یو قسم (۳) یو قسم مرغۍ چې د شپې اوازونه کوي (۴) د پښتنو زنانه ؤ یو نوم (۵) پاتې.

دا به واوړه د تا پاتو شي اے جانه
که بنې جُونه که اسونه که اطلس    خوشحال

**پاتو پښخه** -(پا+تو+پې + نْ+ ښه ) [ پ (خل) اس ،مؤ، وا، ج پاتوپښخې] چرمبنکۍ ، رنده مېږۍ ، مارخورۍ ، چمچکۍ ، چمچورۍ.

**پاتو څېه** :- (پا + تو + څ + یه ) [ اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پاتوڅېې ] سُنبل ، د دارو یو بوټے ، یو قسم وابنۀ چې ډډ ئې تور او پاڼې ئې ورکوټې وي.او اکثر په نوجن ځاے کېږي.

**پاتولوژي** :- (پا + تو + لو + ژيْ ) [ پ ،(روسي قاموس) انگ : پتهالوجي اس ، مؤ ] و —— پاتالوژي.

**پاتولوژيکي** :- (پا + تو + لو + ژيْ + کيْ ) [ پ (روسي قاموس) انگ : پتهالوجيکي ، اس ، مؤ] و —— پاتالوژيکي.

**پاته** :- (پا + ته ) [ پ (گن) ص ] (۱) پاتې ، پاتو ، باقي ، بقايا ، (۲) فېل ناکام ، (۳) ایسار ، اټال ، معطل.

—— **کول**:-(مص تر) (۱) ایسارول،اټالول،معطل کول،پاتې کول (۲) فېلول ، ناکامول (۳) مېلمه کول (۴) د څۀ څيز نه څۀ حصه پاتې کول.

—— **کېدل** :- (مص تر (۱) ایسارېدل ، اټالېدل ، معطل کېدل ، پاتې کېدل (۲) مېلمه کېدل (۳) فېل کېدل ، ناکامېدل (۴) د څۀ څيز نه څۀ حصه پاتې کېدل ، پاتېدل.

**پاته شوے** :- (پا ته + ش + وے ) [ پ (گن) اس ، مف ، مذ، وا، ج : پاته شوي ، مؤ ، وا، پاتې شوې) ] (۱) پاتې شوے شے ، باقي مانده ، جُوټه ، پس خورده (۲) ایسار ، اټال ، روستو پاتې شوے ، (۳) فېل شوے ، ناکام شوے.

**پاته مړنه** :- (پاته + مِ + ړِ + نَه ) [ اف پ (قاموس) مؤ ، وا] پاته مړینه ، پاته مړے ، د مړي نه پاتې شوے مال یا جائیداد ، میراث، وراثت.

**پاته مړے** :- (پاته + مْ + ړَے ) [ اف ، پ (قاموس) مذ ، وا] و —— پاته مړنه

—— **کېدل** :- (اف) مص تر ، په میراث کښې پاتې کېدل.

**پاته مړینه** :- (پا + ته + مْ + ړِيْ + نه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و —— پاته مړنه.

**پاته والے** :- (پاته + وا + لے ) [ پ ، مذ] بقا موندل ، باقي پاتې کېدل ، همېشوالے ، تل والے.

**پاته وړے** :- (پاته + وُ + ړَے ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا، ج : باته وړي ، (مؤ : پاته وړې ) ] میراث خور.

**پاتې** :- (پا + تې ) [ پ ، ص ] و —— پاته.

له خجلته سپوږمۍ پاتې شي بې نوره
چې صبا که ستا له مخه برابر مخ    معزالله خان

—— **کېدل**:-( پ ، مح ) په څۀ کار کښې روستو کېدل ، څۀ کار ته ډېره نۀ لگېدل.

—— **راتلل**:- (پ مص تر) (۱) ناکامیابه کېدل، فېلېدل (۲) په مقابله کښې ببلات کول، یا پړ کېدل (۳) وعده خلافي کول، لوظ نۀ پوره کول.

—— **راوستل** :- (پ ، مص تر ) (۱) چاله په مقابله کښې ماتې ورکول یا پړول (۲) لاجواب کول ، بل غلے کول.

—— **کول** :- (پ ، مص تر ) و —— پاته کول.

—— **کېدل** :- (پ ، مص تر ) و —— پاته کېدل.

**پاتې شوي** :- (پا + تې + شْ + وي ) [ پ ، اس ، مف ، وا ، ج : پاتې شوي] و —— پاته شوے.

**پاتې شون** :- (پا + تې + شُوْ + نْ ) [ پ ، اس ] بقا ، باقي پاتې کېدنه ، همېشوالے ، دوام.

**پاتې شونکے** :- (پا + تې + شُوْ + نْ + کَے ) [ پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا ، ج: پاتې شوُنکي ] (۱) هغه پاتې شونے څيز چې روستو پاتې کېدونکے وي.
(۲) جُوټه ،و روستو پاتې شوے ، باقیمانده ، پس خورده.

**پاتې شونے** :- (پا + تې + شُوْ + نَے ) [ پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا، ج : پاتې شوني ] و —— پاتې شُونکے.

**پاتې کېدونکے** :- (پا + تې + کې + دُوْ + نْ + کَے ) [ پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا ، ج : پاتې کېدونکي ] هغه څيز یا هغه کس چې روستو پاتې کېږي پاتېدونے ، پاته کېدونکے ، پاتېدونکے.

**پاتۍ** :- (پا+ تِيْ ) [ پ (ب ، خ) اس ، مؤ ، وا، ج : پاتۍ ، پاتیدن] (۱) و —— پات (۲) یو نوم ، پاتیگے.

**پاتېدل** :- (پا + تې + دْ + لْ ) [ پ ، مص ، لا] و —— پاته کېدل.

**پاتېدنګ** :- (پا+ تې + دَ + نْ + گْ ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و —— پاتېدنه

**پاتېدنه** :- (پا+ تې + دْ + نَ ) [ پ ، حمص ] (۱) پاتې کېدنه ، روستو پاتې کېدنه، باقي پاتې کېدنه (۲) فېلېدنه ، ناکامېدنه .

**پاتېدونکے** :- (پا + تې + دُوْ + نْ + کَے ) [ پ ، اس ،فا ع ، مذ ، وا ، ج : پاتېدونکي ] و —— پاتې کېدونکے.

**پاتېدُونے** :- (پا + تې + دُوْ + نَے ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: پاتېدوني] و —— پاتې کېدُونکے.

**پاتېدۀ** :- (پا+ تې + دَۀ ) [ پ ، حمص ] و —— پاتېدنه.

**پاتې شون**:-(پا+تې+شُوْ+ نْ ) [ اف : پ (قاموس) مفا] چې پاتې شوے وي

**پاتې شُونکے** :- (پا + تې + شُو + نْ + کَے ) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پاتې

شُونکي ] پاتې شوے څیز ، پس خورده .

**پاتیله** :- (پا + تي + له) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج :پاتیلې ] پتیله ، د پخلي دپاره د ارتې خولې دېګچې ، چې عموماً د سلورو یا مسو نه جوړ وي

**پاټ** :- (پا + ټْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پاټونه ] لوے څلورګوټیز (مستطیل) پټے چې پلنوالے ئې تقریباً پنځوسو نه تر شپېتو میټرو پورې وي

**پاټ** :- (پا + ټْ) [ پ (ګن) اس ، مذ ، وا ، ج : پاټونه ] د پټې ګېر چاپېر پلنه پُوله یا برید .

**پاټ** :- (پا + ټ) [ پ (ب ، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : پاټونه ] خرمن ، پوستکے ، پوټ .

**پاټ**:-(پا+ټ) [پ (عا) انګ : پارټ، اس ، مذ ، و ، ج : پاټُونه] حصه، برخه

**پاټ** :- (پا + ټ) [ انګ ، اس ، مذ ، ج : پاټونه ] د وړو او لویو بولو لوښے چې عموماً په اسپتالونو کښې استعمالېږي .

**پاټخ** :- (پا + ټْ + خْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ] د بوټانو صفا کولو برش .

**پاټک** :- (پا + ټَ + کْ) [ پ ، ه : پهاټک ، اس ، مذ ، وا ، ج : پاټکونه پاټکینه ] (۱) لویه دروازه ، عموماً هغه لویه دروازه چې تمبې ئې د جنګلو په شان جوړې شوې وي . او د بره نه بند نهٔ وي . لکه د ګاډي پاټک ، (۲) کانجي غوس ، هغه بنده احاطه چې د حکومت د طرفه په کښې خوشې څاروي بندولے شي . او په جُرمانه یا ناغه ورکولو پرېښودے شي . (۳) بندېز ، خنډ .

**ـــــ اچول** :- اص . په څهٔ خبره کښې خنډ اچول ، د خبرې پرې کول .

**ـــــ کښې داخلول** :- پ ، مص تر ، د بې څښتنه یا خوشې څاروي په پاټک کښې بندول یا داخلول .

**د پاټک نه راخلاصول** :- (پ ، مص تر ) د جرمانې په ورکولو د خپل خوشې څاروي د پاټک نه راخلاصول .

**پاټک والا** :(پا+ ټَ +کْ + وا+ لا) [پ، اس، مذ ، وا] (۱) د وَرْڅوکیدار خصوصاً د ګاډي د پاټک څوکیدار (۲) د کانجي غوس ذمه وار سړے ، هغه څوک چې بې څښتنه څاروي ورسره جمع کولے شي .

**پاټکے** :- (پا+ ټ + کَے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پاټکي ] (۱) د اندرپایې یا د پارچنګ دستکے (۲) ټکړه ، حصه ، برخه ، ټوټه (۳) د ښار یوه برخه (۴) کوډې ، سحر او جادو ، (اف : قاموس) (۵) پال ، فال . (۲) اونه کښې د ختو خرپ چې پښې ګوتې پکښې اړمې شي .

**پاټلی** :- (پا+ ټ + لَ + ی) [ پ ، ه : پټړي ، اس ، مؤ ، وا ] (۱) د ګاډي سړک (۲) د سړک یا لوئې لارې غاړې ته نرۍ لار چې پیاده خلک پرې ځي

**پاټے** :- (پا+ ټے) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : پاټي ] (۱) د ډانډت د لیندې د موټې حلقه (۲) د مچوغنې ، لیندې یا غُلبل خولهٔ چې کانې پکښې کښېښولے شي . (۳) جلب ، ولونے .

**پاټې خان** :- (پا+ ټې + خا+ نْ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پاټې خانان] د اوچې خان ، معتبر ، دُوړے مار ، هغه څوک چې د خپل حېثیت نه زیات خان ښکاره کوي .

**پاجامه** :- (پا + جا + مه) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاجامې ] پرتوګ ، خصوصاً تنګ پرتوګ ، چې اکثر د شپې د اودهٔ کېدو په وخت کښې اغوستے شي .

**پاجوله** :- (پا + جو + لَه) [ پ ، اس ، مو ، وا ، ج : پاجولې ] (۱) ارتې ببرتې جرابې ، پاڅوله (۲) د اوڅغونې جرابې .

**پاجي** :- (پا + جِيْ) [ فا ، ص ، مذ ، وا ، ج :: پاجیان ] (۱) کمینه ، نیچ ، رذیل ، ذلیل ، بد ذات ، (۲) غلام ، نوکر ، خدمتګار (۳) ملنګان .

تهٔ صاحب په لاره پلے نفر سورځي
خو هم بیا صاحب صاحب پاجي پاجي — خوشحال
بــادشــاهــان دي ګــدایـان د ګدایانو
ځاے په ځاے دعا جوئي کا له پاجیانو — شاه و ګدا

**پاجي توب**:-(پاجي+تو+بْ) [پ،اس،مذ] کمینه توب، شرارت، رذیل توب

**پاچا** :- (پا+چا ) [ پ ،اس ، مذ ، وا ، ج : پاچهان ، پاچاګان ،پاچایان] (۱) بادشاه ، باچا (۲) مشر ، مخوریز ، سپین روبے ، ځینې قبیلې ئې د تکیه کلام په طور استعمالوي (۳) سېد ، ال رسول .

**پاچاجي** :- (پا+ چا + جي ) [ پ ، اس ، ص ، مذ] باچاجي ، د درناوي غږ

**پاچا خره** :- (پا + چا+ خَ + رَه) [ پ ، مؤ ، وا] یو خړ رنګې چینجے .

**پاچا وزیرک** :- (پاچا + وَ + زِيْ + رَ + کْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] د یوې مشهورې لوبې نوم .

**ـــــ کول** :- (اف) مص تر . د باچا وزیر لوبه کول .

**پاچاهي** :- (پا + چا + هِيْ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاچاهۍ ] (۱) پاچایۍ ، بادشاهي ، حکمراني ، حکومت ، سلطنت ، (۲) بې فکري ، بې غمي ، عېش ، خوشحالي .

**ـــــ کول** :- (مص تر) (۱) بادشاهي کول ، حکومت کول، حکم راني (۲) بې فکره اوسېدل، مزې کول ، عېش عشرت کول ، غم درد نهٔ کول

**پر پاچاهۍ کښېنستل** :- (اص) بادشاه کېدل ، په تخت کښېناستل .

**پاچـاهي لار** :- (پاچـاهي + لا+ رْ) [ پ ، اس ص ، مـؤ ،وا ، ج : پاچـاهي لارې] (۱) لویه لار ، شاه راه ، هغه پلنه لار چې هر رنګه تګ راتګ پرې کېږي چلندي لار ، (۲) بادشاهي قاعده یا دستور ، د تلو لار .

**پاچائي** :- (پا + چا + ئي) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاچایئ ] [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاچایۍ ] و ـــ پاچاهي

**پاچړ** :- (پا + چَ + ړْ) [ پ ، ص ، مذ ، وا] سخا، ګنده ، ناولے

**پاچکنړے** :- (پا + چ + کْ + نْ + ړَے) [ اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا] د یو بوټي نوم دے چې ریشقه کښې کېږي . سپین نري نري ګلونه کوي او سربش ترې جوړېږي .

**پاچه خزک** :- (پا + چه + خْ+ زَ + کْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) د چرګانو یو قسم ، چې پښې ئې لنډې وي (۲) د آتش بازۍ یو قسم .

**پاچهي** :- (پا + چَ + هِيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] و ـ پاچاهي

**پاچهي لار** :- (پا + چَ + هِيْ + لا+ رْ) [ اف ، پ (قاموس) ، اس ، ص ، مؤ، وا ، ج : پاچهي لارې ] و ـــ پاچاهي لار .

**پاچي** :- (پا + چَ + يِيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ، وا] و ـــ پاچاهي .

**پاڅول** :- (پا + څْسَ + وْ + لْ) [ پ ، مص ، مت (۱) راپورته کول ، اودرول ولاړول چګول (۲) د خوبه راویښول ، رابېدارول (۳) په دم پېریان یا جادو لرې کول (۴) لوستل ، ولاړول (۵) الوزول (۲) د کلي یا د ملک نه شړل .

**پاڅولے** :- (پا + څْسَ + وْ + لَے) [ پ ، اس ، مف ، وا ، ج : پاڅولي (مؤ ، وا : پاڅولې) ] (۱) راپورته کړے ، اودرولے شوے ، ولاړکړے ، راجګ کړے (۲) راویښ کړے ، بېدار کړے (۳) الوزولے ، (۴) د کلي یا د ملک نه شړلے شوے (۵) لوستلے .

**پاڅونګ** :- (پا + څْسَ + وْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـ پاڅونه

**پاڅونه** :- (پا + څْسَ + وْ + نَه) [ پ ، حمص ] (۱) ولاړونه ، اودرونه ، چګونه ، راپورته کونه (۲) رابېدارونه ، د خوب نه راولاړونه ،

ویښونه (۳) الوزونه ، (۴) لوستنه (۵) د کلي یا ملک نه بهر کونه (۲) په دم پېري یا جادو لرې کونه.

**پـاڅوُونکے** :- (پـا + ئْسَ +وُوْ + نْ + کَـے) [پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : پـاڅوُونکي] (۱) راپورتـه کـوُونکے ، اودروُونکے ، راولاړوُونکـے ، چګـوُونکے (۲) رابېـداروُونکے ، راویښـوُنکے (۳) خط لوسـتونکے ، (۴) الوزوُونکے (۵) د کلي یا ملک نه شړُونکے (۲) په دم د پېـري یـا جادو لرې کوُونکے.

**پاڅېدل** :- (پا + ئْسې + دَلْ) [پ، مص، لا] (۱) راولاړېدل ، راپورتـه کېـدل ، چګېدل. ''متل :- چې اودرېدے نۀ شوې نو پاڅېدې ولې؟'' (۲) رابېدارېـدل ، ویښـېدل (۳) لـرې کېـدل، نـۀ پـاتې کېـدل ، (۴) الوتل لکه مرغۍ پاڅېده (۵) د کلي یـا د ملک نـه بـل خوا کېده کول.

**پاڅېدلے** :- (پا + ئْسې + دْ + لَے) [پ ، مف ، وا ، ج : پاڅېدلي] (۱) پورته شوے ،اودرېدلے ، ولاړ شوے ، چګ شوے (۲) راویښ شوے، بېدار شوے ، جګ شوے (۳) الوتلے (۴) د کلي یـا د ملک نه په کډه تلے.

**پاڅېدنګ** -(پاڅْسې + دَ + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ پاڅېدنه.

**پاڅېدنه** :- (پا + ئْسې + دْ + نَه) [پ ، حمص] (۱) اودرېدنه ، ولاړېدنـه چګېدنـه (۲) بېدارېدنـه ، ویښـېدنه (۳) الوتنـه (۴) د خـط لوسـتنه (۵) د کلي یا ملک نه په کډه وتنه.

**پاڅېـدُونکے** :- (پاڅْسې + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : پاڅېـدونکي] (۱) اودرېـدونکے ، پورتـه کېـدونکے ، ولاړېـدونکے ، چګېـدونکے (۲) بېدارېـدونکے ، ویښـېدونکے (۳) الوتـونکے (۴) د کلي یا د ملک نه شړُونکے (۵) خط لوستُونکے.

**پاڅېدۀ** :- (پا+ئْسې + دۀ) [پ ، حمص] و ـــ پاڅېدنه.

**پاخانه** :- (پا + خَا + نَه) [فـا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاخانې] د حاجت کولـو یا بولو کولو ځاے ، ټټي.

**پاخسه** :- (پـا + خْ + سَـه) [پ ، اس ، مـؤ، وا، ج : پاخسـې] (۱) پخسـه پسخه ، هغه سخته لونده کړې ختـه چې دېوال تـرې وهلـے شي. (۲) هغه ځـاے چې ختې ختې او پوست وي. جبه (۳) (یوسفزي) دېوال وهلو دپاره د شپې ختـه جوړه کـړي. چې لـږه سخته شي نـو نخښـې پکښې اوکړي. چې د نخښو په مېنځ کښې چمان اوچ شي نو لکـه د خښتو ترې دېوال وهي. دې چمانو ته پسخه وائي.

**پاخۀ** :- (پا + خَۀ) [پ ، ص ، مذ ، ج ، مؤ ، وا ، پخه ، ج : پخې] د پوخ جمع ، (۱) پوخ شوے ، پخته (۲) تجربه کار ، هوښیار ، لکه :- پاخۀ خلق کچه کـار نـۀ کـوي. (۳) کلک ، مضبوط ، پـوخ نیـت (۴) نـۀ تلونکے او نۀ کمېدونکے ، پوخ رنګ لکه پاخه رنګونـه (۵) د میـوې کمال ته رسېدۀ ، یا د خوراک جوګه کېدۀ. لکه : پاخۀ انځران (۲) د کاڼو یا د خښتو جوړ شوے ، لکه پاخۀ کورونـه ، پاخۀ دېوالونـه ، سیمټي جوړ (۷) پوره کمال ته رسېدلي ، لکه پاخۀ استاذان او پـه مفهوم کښې پاخۀ شېطانان (۸) مستقل ، پخه نوکري ، لکه پاخۀ نوکران (۹) ښکلے ، درست لکه پاخۀ لیکل.

**ـــــ اومۀ** :- (اص) کچه او پاخۀ ، هر رنګ ، قسم قسم ، ښۀ بد ګډ وډ.

**ـــــ پاخۀ** :- (ص) مضبوط ، یعني د کاڼو او پخو خښتو وغېره نه جوړ.

**ـــــ ګذارونه** :- (اص) (۱) د مقابلې مشهورې لوبې ، چې مخ ورته وائي، په دې کښې یو څو ګذارونه کچه وي او اخري دوو تـه پاخۀ ګذارونـه وائي چې ورۀ پرۀ پرې کېږي (۲) رسا ګذارونه.

**ـــــ وئیل** :- (مص تر) پخې خبرې کول ، د عقل او تجربې خبرې کـول. د مطلب نه ډکې خبرې کول.

**ـــــ هډ ته رسېدل** :- (مح) ښې ځوانۍ تـه رسېدل ، تقریباً د پنځویشـتو کالو کېدل.

**پاداش** :- (پا+ دا + شْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پاداشونه] بـدل ، عـوض ،اجر ، ثمره

کۀ څۀ حق یا د روزې یا د نیکۍ شته
زۀ پـاداش وتــه په طمع د هریک یم خوشحال

**پـادري** :- (پـا + دْ + رِيْ) [پرتګالي، اس ، مـذ ، و، ج : پادریـان] د عیسـایانو مذهبي مشر، د عیسـایانو مُلا، د عیسائیت تبلیغ کوُونکے ، عیسـوي مبلغ.

**لاټ پادري** :- (اص) لوے پادري ، مشر پادري.

**پاده** :- (پا+دَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پادې] څاروے ، چارپایه ، ځناور.

**پردۍ پاده پوول** :- (اص) پردي څاروي څرول ، پردے مال پوول.

**پاده بان** :- (پاده + با + نْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : بـاده بانـان ، (مؤ وا، پاده بانه، ج : باده بـانې)] پاده وان ، د څـارو څـرونکے ، هغـه سـړے چې څاروي څروي. غوبه ، شپُون ، اجړي.

بل هنر کسب ئې نۀ ؤ
سفیــهان ؤ باده بان خوشحال

**پـاده وان** :- (پا+ دَه + وا + نْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پـاده وانـان ، مؤ ، وا: پاده وانه ، ج : پاده وانې] و ـــ پاده بان.

**پاړه** :- (پـا + ړَه) [اف : پ (قـاموس) مؤ ، وا ، ج : پـاړې] (۱) تسـمه (۲) د مټ غټې پلې (۳) کچه ګنډه یا ګنډون ، لویه ګینډه.

**پاړه** :- (پـا + ړَه) [پ (ګن) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پـاړې] د غوښې پـرې کـړې نرۍ حصه.

**پاړې کول** :- (مص تر) د غوښې نرۍ نرۍ اوږدې ټکرې پرېکول.

**پاړې کېدل** :- (مص تر) د غوښو نرۍ نرۍ اوږدې ټکرې ټکرې کېدل.

**پار** :- (پا+ر) [پ ، فا : پهر ، اس ، مـذ، وا ، ج : پارونـه] د ورځـې شپې د اتو برخو نه یوه برخه.

اوس خو کار دوار د پار دے
که د زوئې که دې پلار دے خوشحال

**پـــه پـارو پـارو** :- (اص) (۱) پـه پـارونو پـارونو ، یعنې د ډېر وخت دپـاره (۲) څو څو څله ، څو څو وارې.

**پار**:- (پا + رْ) [پ (ب ، خ) اس ، مذ] چابي ، کُنجي ، پالاټے ، کیلـۍ ، نوسے.

**پار** :- (پـا + رْ) [اف :پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) تحریک ، اوچتونه ، پورته کونه ، اماده کونه (۲) لحاظ ، خاطر (۳) اختیار ، وس ، واک (۴) اقتدار ، طاقت ، زور.

**ـــــ پیدا کول** :- (پ ، مص تر) طاقت پېدا کول ، د زور او قـوت خاوند کېدل ، اقتدار حاصلول.

**ـــــ ورکول** :- (پ ، مص تر) (۱) اختیـار ورکول ، واک ورکول. (۲) د څۀ کار دپاره اوچتول ، پورته کول ، اماده کول.

**د خداے پر پـار** :- (اف) اص. د خداے دپـاره ، د خداے پـه خاطر ، د خداے په روئې. د خداے په نوم ، د الله تعالیٰ په نوم.

**پـارا** :- (پـا + را) [ه ، اس ، مؤ] پـاره ، یـو سپـین رنګې او درونـد دهـات چې په تهرمامیټر کښې اکثر استعمالېږي. سیماب.

**ـــــ ختل** :- (اص) (۱) د ګرمۍ لـه کبلـه د پـارې اوچتېـدل یـا پـاس ختـل

درجه حرارت زیاتېدل (۲) غصه کېدل ، قهرېدل.

**پارا** :- (پا + را) [اس ، معرا] په برازیل کښې د یو علاقې نوم.

**پارا زیت** :- (پا+را+زِيْ+ تْ) [روسي قاموس) اس ، ص ، مذ] (۱) پرېوتـه ، پرېوتکې ، ژوري ، هغه څیز چې د بل په وینو پائي (۲) مفت خور ، بې کاره ، تیار خور.

**پارازتیالوژي** :- (پا + را + زِيْ_تا+ لـو + ژِيْ) [روسي قاموس ، ص] د بـل په وینو د پائېدُونکو څیزونو علم.

**پارازیتي** :- (پا+ را + زِيْ+ تِيْ) [روسي قاموس ، ص] طفیلي ، د بـل پـه کور خړېدنه ، تیارلګ.

**پاراشوت** :- (پا+ را + شُو + تْ) [پ (روسي قاموس) انګ : پیراشوټ ، اس ، مذ ، وا] پیراشوټ ، هوائي چترۍ .

**پاراشوتي** :- (پـا + را + شُـوْ + تـيْ) [پ (روسـي قـاموس) اس ، مـذ ، وا] پیراشوټي.

**پاراف**:- (پا + را + فْ) [(روسي قاموس) اس، مذ] دستخط، لاس لیک

**قرار داد پاراف کول** :- (اص) (روسي قـاموس) پـه قـرار داد دسـتخط کـول ، یا لاس لیک کول.

**پـاراګوې** :- (پـا+ را + ګـوئې) انګ ، اس ، معـر ، مـذ] پـه جنـوبي امریکـه کښې د یو ملک او د یو سیند نوم.

**پاراماریبو** :- (پا+ را + ما + رِيْ + بو) [(روسي قـاموس) اس ، مـذ ، وا] پـه سویلي امریکه کښې په مرکزي ګیانه کښې د یو ښار نوم.

**پارانـا** :- (پـا+ را + نـا) [انګ ، اس ، معـر ، مـذ] د سـویلي امریکـې پـه ارجنټائن نومې ملک کښې د یو لوے سیند نوم.

**پارانه**:- (پا+را+نه) [اس ، معر ] په سویلي امریکه کښې یو لوے سیند

**پارتي** :- (پا + رْ+ تِيْ) [پ (روسي قـاموس) انګ : پـارتهي ، اس ، معـر ، مذ ، وا ، ج : پارتهیان] (۱) یو قوم چې پخوا پـه شـمالي ایران کښې اوسېدۀ (۲) ددې قوم یو وګړے.

**پارتیزان**:- (پا + رْ+ تِيْ+ زا + نْ) [اف : پ (روسي قـاموس)انګ ، اس ، مذ] رضا کار ، ګوریلا ، چاپه مار.

**پارتیزاني** :- (پا + ر + تِيْ+ زا + نِيْ) [اف : پ (روسي قـاموس) انګ، ص ] رضاکاري ، ګوریلا توب ، چاپه زني.

**پـارټ** :- (پـا+ رْ+ ټْ) [انګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پارټونـه] (۱) حصـه ، برخه ، ټکړه ، ټوټه ، ټوک (۲) په ډرامـه کښـې د یـو کـردار مکالمـه او اداکاري.

**ـــــ ادا کول** :- (اص) په ډرامه ، ناټک یا فلم یا پـه څۀ کـار کښـې خپلـه برخه کار کول.

**پارټ ټائم** :- (پا رټ + ټا + ئم) [انګ ، اس ، ص] د لږ وخت دپاره جُز وقتي ، په څۀ کارخانه ، دفتـر یـا بـل ځـائے کښـې د څۀ وخت دپـاره کار کول.

**پـارټنر**:- (پا+رْ+ ټْ+ نَ + رْ) [انګ ، اس مـذ ، وا ، ج : پـارټنران (مۇ ، وا :پارټنره، ج: پارټنرې)] حصه دار ، شریک ، بائیوال، همکار.

**پـارټي** :- (پـا +ر+ ټـيْ) [انګ، اس، مـۇ، وا ، ج : پـارټۍ یـا پارټیـانې] (۱) پالټي، جرګه ، ډله ، ټولے (۲) د چایو یـا ډوډۍ مېلمسـتیا ، لکـه ټي پارټي.

**ـــــ ته تلل** :- (اص) مېلمستیا ته بلل.

**ـــــ جوړول**:- (اص) (۱) ډله جوړول (۲) د مېلمستیا بندوبست کول.

**ـــــ کول** :- (اص) ډوډۍ کول ، دعوت کول ، مېلمستیا کول .

**ـــــ ورکول** :- (اص) چا ته مېلمستیا ورکول.

**پارټي باز** :- (پا رټي + با + زْ) [پ ، تر ، اس ، مذ ، وا ، ج : پـارټي بـازان ، (مۇ ، وا: پـارټي بـازه ، ج : پـارټي بـازې)] (۱) پـالټي بـاز ، ګنـدي باز،پره جنبه جوړوُونکے، ډله جوړوُونکے (۲) ورانکارے، شېطان ، فسادي ، دوه جنګوُونکے.

**پارټي بازي** :- (پارټي + با + ز + يْ) [اس ، مر ، مۇ ، وا ، ج : پارټي بـازۍ ] پالټي بازي ، عموماً سیاسي مقصد دپاره د یـو جومـات پـه ځـائے ورې ورې ډلـې جـوړول او د خپلـې ډلـې جـائز ناجـائز مرسـته او طرفداري کول.

**پارتهیا** :- (پا + رْ+ تْهـ + یَا) [اس ، معر ، مذ] یو پخوانے ملک ، چې د ایران قطب او د کیسپین جزیرې سوېل ډډې ته پروت ؤ.په دې ملک د ۲۴۸ ق م نه واخلې ۲۲۷ ق م پـورې اشکاني بادشاهانو حکومت کړے ؤ.

**پارټي پالېټکس** :- (پارټي + پا + لـې + ټِ + ک + س) [انګ ، اس ، مر] د پارټۍ سیاسي نظریـه ، پـه جمهوري پـارټو یـا ډلـو کښـې یـو ممبر د انفرادي رائې پـه ځـائے د اجتمـاعي فېصلې پابنـد وي او د متفقـه فېصلې نه بهر وتے نۀ شي.

**پـارټي ډسـپلن** :- (پـارټي + ډِ +س + پْ+ لِ + نْ) [انـګ ، اس ، معـر] د پارټۍ نظم و ضبط.

**پارټیشن**:-(پا+ر+ټِيْ+ شَ + نْ) [انګ ، ص ، مذ] تقسیم ، وېش، بېلتون

**پارچاؤ** :- (پا+ رْ+ چاؤ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پارچاؤنه] هغـه ورخ چې د ژرندې د ناوې په سر کښې جوړ شوے وي.چې کله ژرنده اودروي نو اوبۀ په دغې ورخ واړوي.

**پارچـاؤ** :- (پـا + رْ+ چـاؤ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پارچاوونـه (مـۇ ، وا: پارچاوه ، ج : پارچاوے)] معطل ، اټال ، ولاړ ، بېکار ، کریاب.

**ـــــ کول** :- (پ ، مص تر) پار چاوول ، ژرنده اودرول.

**ـــــ کېدل** :- (پ ، مص تر) (۱) (د ژرندې) اودرېدل (۲) د کـار معطـل کېدل یا بندېدل.

**پارچــاؤ شــوے** :- (پارچــاؤ + شْ+ وَے) [پ ، اس ، مــف ، وا ، ج : پارچاؤشوي] اودرېدلے ، بند شوے ، بېکاره شوے ، معطل شوے ، کریاب شوے ، وران شوے ، رِنګ شوے.

**پارچـاؤ کـړے** :- (پـا+ رْ+ چـاؤ + کْ+ ړَے) [پ ، اس ، مـف ، وا ، ج : پارچاؤکړي] هغه څیز (ژرنده وغېره) چې اودرولے شوې وي.معطل کړے شوے ، کریاب شوے.

**پارچاؤ کوُونکے** :- (پا+ رْ+ چاؤ + کَ+ وُوْ+ نْ+ کَے) [پ، اس ، فـا ع ،وا، ج : پارچاؤ کوُونکي] د ژرندې اودرونکے ، کریابوُنکے

**پارچاؤکېدونکے** :- (پارچـاؤ + کـې + دُو + نْ+ کَـے) [پ ، اس ، مف مـذ ، وا ، ج : پارچــاؤ کېــدونکي] پارچاوېــدونکے ، اودرېــدونکے ، بندېدونکے ، معطل کېدونکے ، بېکاره کېدونکے.

**پارچـاوول** :- (پـا+ رْ+ چـا + وَ+ وْ+ لْ) [پ ، مـص ، مـت] د ژرنـدې د اودرولو دپاره اوبۀ په پارچاؤ اړول، ژرنده یا د اوړو مشین اودرول.

**پارچا وونه** :- (پا + رْ+ چا + و + و + نـه) [پ حمص] د ژرندې یـا د اوړو مشین اودرونه.

**پارچاو وُونکے** :- (پا+ ر+ چا + وَ+ وُوْ+ نْ+ کَے) [پ ، اس فـا ع ، مذ ، وا، ج : پارچاو وُونکي] و ـــ پارچاوکوُونکے.

**پارچاوېدل**:- (پا+ر+چا+وې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] و ـ پارچاوکېدل.

**پارچاوېدنګ** :- (پا+ رْ+ چا + وې + دَ+ نْ+ ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ پارچاوېدنه.

**پارچاوېدنه** :- (پـا + رْ + چـا + وې + دْ + نـه) [پ ، حمص] پارچاوېـدهٔ د ژرندې اودرېدنه یا معطل کېدنه ، د کار معطل یا بندېدنه ، بې کاره کېدنه ، کرپابېدنه.

**پارچا وېدُونکے** :- (پارچا + وې + دُو + نْ + کَے) [پ ، اس ، فـاع ، مذ ، وا ، ج : پارچاوېدونکي] و ـــ پارچاؤ کېدُونکے.

**پارچاوېدهٔ** :- (پا + رْ + چا + وې + دهٔ) [پ ، حمص] و ـ پارچاوېدنه.

**پارچـل** :- (پـار + چَ + لْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] کچـره یـا روسـتو پاتې شوې ارزان بیه مېوه.

**پارچنـگ** :- (پـا+ رْ + چَ +نْ + گْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: پارچنگونه] اندرپایه ، د لرگي پوړۍ ، پارخنگ ، پاړسنگ.

**پـارچنگے** :- (پـا + رْ + چَ + نْ + گـے) [پ ، اس ، تصـغیر ، مـذ ،وا ، ج: پارچنگي] وړه اندرپایه ، وړوکے پارچنگ.

**پـارچنگے جهـاز** :-(پـارچنگے + جَ + هـا + زْ) [پ ، اس ، مر ، مـذ ، وا ، ج : پارچنگي جهازونه] د هوائي جهازونو یو زوړ قسم چې دوه پرې به ئې وې.او لکه د پارچنگ به یوې بلې سره تړلې وې.

**پارچه** :- (پار+ چه) [پ،اس، مؤ، وا، ج : پارچې] (۱) هغه پلن توگلے لرگے چې د لوټکو د لاندې پروت وي.او د لوټکو اوبهٔ پکښې راغورزېږي. او د هغې نه بیا ناوې ته او د ناوې نه ولې ته ځي (۲) د اونې ډډه کړې تنه ، چې د اودس دپاره په کښې د کوهي نه اوبهٔ اچېږي ، دوچه.

**پارچه** :- (پا + رْ + چَه) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پارچې] ټکړه ، ټوټه.

**پارچه باف** :- (پارچه + با + فْ) [فا ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پارچه بافان] رخت جوړوُونکے ، رخت ساز.

**پارچه بافي** :- (پارچه + با + فيْ) [فـا ، اس ، مـؤ] د ټوکو اودول ، د ټوکو جوړول ، د ټوکو جوړولو کسب ، جولاتوب.

ـــــ **پارچه کول** :- (اص) ټکړې ټکړې کـول ، ریخې ریخې کـول ، بسمې بسمې کول ، ټوټې ټوټې کول ، ذره ذره کول.

ـــــ **پارچـه کېـدل** :- (پ ، مـص ، لا) ټکړې ټکړې کېـدل ، ټـوټې ټـوټې کېدل ، ذره ذره کېدل ، بسمې بسمې کېدل.

**پارس** :- (پا+ رْ+ سْ) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : پارسه] (۱) یو قسم خیـالي کاڼے چې د هغې متعلق دا خیال دے چې اوسپنه ورسره اوجنگېږي نو سرهٔ زر شي.عموماً ورته سنگ پارس وائي. (۲) هغـه سړے چې د هغـه پـه حقلـه دا خیـال وي چې څـوک ورتـه نزدې شي نـو فـېض یـا فائده ترې مومي.

**پارس**:- (پا+رْ + سْ) [فا ، اس ، مذ] (۱) د هوشنگ بادشاه د زوے نوم (۲) ایران ، فارس.

**پارسـا** :- (پـا + رْ + سـا) [فـا ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : پارسـایان] پرهېزگار ، نېک ، متقي ، پاک لمنه ، صالح.

ولې مرد پکښې هغه دے

چـې سخي وي هـم پارسا رحمٰن بابا

کـافران کـه دنیا غواړي کافران دي

اوس مسلم مؤمن پارسادې دنیا غواړي مصري خان

**پارسـائي** :- (پـا + رْ + سـا + ئـيْ) [فـا ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پارسـایۍ] پرهېزگاري ، نېک عملۍ ، تقوٰی ، پاک لمني.

زهٔ خوشحال چې ستا پـه مخ باندې مئین شوم

پارســـائي غـــواړي لــــه مانـــه حتمـــا

(خوشحال خان خټک)

ما هاله له پارسائي نهٔ ؤ لاس وللې

چې په لاس کړهٔ مطربانو ربابونه رحمٰن بابا

**پارساتے** :- (پا+ رْ + سا + تَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ج : پارساتي (مؤ : وا: پارساتۍ] لحاظ دار ، مخ ملاخظه کوُونکے.

**پارسـل** :- (پـا+ ر + سْ + لْ) [انـگ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پارسـلونه یـا پارسلینه] په ډاک یا گاډي وغېره کښې د لېږلو دپاره په کپړه یا کاغذ کښې نغښتي بند څیزونه.

ـــــ **کول** :- (مص تر) (۱) څهٔ څیز د ډاک ، گاډي یا د جهاز وغېره په ذریعه بل ځاے ته لېږل.(۲) د چا سړي چرته لېږل.

**پارسنگ** :- (پا + رْ + سَ+ نْ + گْ) [پ ، اس ، مذ ، وا، ج : پارسنگونه] (۱) پاړسنگ ، د تلې د دواړو چابړو د برابرولو دپاره چې کوم کاڼے یـا لُوټه یـا بـل څهٔ څیز پـه سپک پلو کښې واچولے شي .هغې ته پارسنگ وائي ، کڼاوي.(۲) پارچنگ ، اندرپایه

متل: د تول نه ئې پارنسگ زیات دے.

**پارسنه** :- (پا+ رْ + سْ + نه) [پ ، اس ، مؤ ، وا، ج : پارسنې] د پارسي قوم ښځه.

**پا رسي**:- (پا + رْ + سِيْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پارسیان ، پارسیون (مؤ ، پارساینه یا پارسنه ، ج : پارساینې یا پارسنې)] اتش پرست یـا د زرتشت هغه منوُنکي څوک چې د مسلمانانو نه اول په ایران یا پارس کښې اوسېدل

**پارسي** :- (پا+ رْ + سِيْ) [پ (عـا) فـا ، فارسي ، فـا ، اس ، مؤ] د پـارس یـا د ایـران ژبـه ، فارسي ، پاړسو ، پـه افغانسـتان کښې ورتـه دري وائي.

**پارسي وان** :- (پارسي + وا+ نْ) [پ ، اس ، مذ، وا، ج : پارسي وانان (مؤ ، پارسي وانه ، ج : پارسي وانې)] د فارسي ژبې ویـونکے ، فارسي خوان.

**پارشمے** :- (پا+ رْ + شَ + مَے) [پ ، (ب، خ) اس ، مذ ، وا، ج : پارشمي] پېش منے ، پېش نمے ، پاړشمے ، پېڅمے.

**پـارک** :- (پـا + رْ + کْ) [انگ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پارکونـه] (۱) د سـېل دپاره جوړ شوے باغ ، چې په کښې په ډېره ښکلې طریقه چمنونه جوړ شـوي وي .او گلونـه ، اونـې بـوټي پکښې لگـولي شـوي وي . سیرگاه (۲) هغه خاص ځاے چې موټرې او ټانگې وغېره په کښې اودرولے شي.

ـــــ **کول**:-(اص) موټر یا ټانگه وغېره په یو مقرر ځاے کښې اودرول

**پارکـال** :- (پـا+ رْ + کـا + لْ) [اف : پ ، (قـاموس) اس ، مـذ] (۱) قـوت طاقت ، وس (۲) اقتدار ، لوئي ، عظمت.

**پرپارکال سپړېدل** :-(اف) اص [پ] اقتدار ، زور قوت موندل ، لوئي موندل

**د پارکاله لوېدل** :- (اف) اص .بې طاقتـه کېدل ، د برمـه پرېوتـل ، د زوره پرېوتل.اقتدار نه پاتې کېدل ، بې وسه کېدل.

**پـارگین** :- (پـا+ رْ + گِـيْ + نْ) [اف : پ (روسـي قـاموس) اس ، مـذ ، وا] (۱) د گندگۍ تالاب ، د فلش یا گندگۍ تالاب (۲) ډېران.

**پارلیمان** :- (پا+ رْ + لِيْ + ما + نْ) [فـا ، انگ ، پارلیمنټ ، اس ، مذ وا ، ج : پارلیمانونـه] (۱) پـه جمهـوري ملکونـو کښې د قـانون جوړولـو جرگه چې وگړي (ممبران) ئې اولس خوښوي .قـانون سازه جرگـه ، (۲) صلاح کاره جرگه.

**پارلیماني** :- (پا+ رْ + لِيْ + مـا + نيْ) [فا، انگ ، پـارلیمنټري ، اس ص] پارلیمـان یـا مجلس مشـاورت یـا قـانون سـازې جرگې سـره تعلـق لرونکے.

ـــــ **حکومت** :- (اص) جمهوري حکومت ، په دې نظام حکومت کښې د

حکومت واکداران د ایوان په مرضۍ کار کوي.

**پارلیمنټ** :- (پا + رْ + لِيْ + مِ + نْ + ټْ) [انګ، اس، مذ، وا، ج: پارلیمنټونه] و ـــ پارلیمان

**پارلیمنټري** :- (پا + رْ + لِيْ + مِ + نْ + ټْ + رِيْ) [انګ، اس، ص] او ـــ پارلیماني.

**پارم** :- (پا + رَ + مْ) [پ (عا) انګ، فارم، اس، مذ، وا، ج: پارمونه] (۱) چاپ شوے کاغذ چې پکښې د ضرورت مطابق لیک کېږي (۲) د مزکې یوه حصه (۳) د غواګانو، ګډو یا د شاتو د مچو د ساتلو ځاے.

**پارو** :- (پا + رُوْ) [فا، اس، مذ، وا، ج: پاروګان] (۱) پاوړه، هغه لرګے چې د اسونو د پښو نه پرې خاشهٔ واښهٔ راښکي او ځاے پرې صفا کوي. (۲) (اف) راشپېل، د زمیدارۍ هغه آله چې غنم اوربشې پرې پاکوي (۳) د کشتۍ چپو.

**پارو** :- (پا + رُوْ) [پ، اس، مذ] د غوشایانو او د خزلې ډېران، د سرې ټپ

**پاروګی** :- (پا + رُو + ګَ + ی) [اف، پ (قاموس) اس، مؤ] منګز، ژمنځ، ږمونځ.

**پارول** :- (پا + رَ + وْ + لْ) [پ، مص، مت] چېړل، قهرول، جنګ یا مقابلې ته تیارول، سوختول، تېزول، اُوچتول، تحریک ورکول، لمسول.

**پارولے** :- (پا + رَ + وْ + لَے) [پ، اس، مف، مذ، وا، ج: پارولي] چېړلے شوے، په قهر کړے شوے، جنګ یا مقابلې ته تیار کړے شوے.

**پارونه** :- (پا + رَ + وُوْ + نَه) [پ، حمص] چېړنه، قهرونه، سُوختونه، جنګ یا مقابلې ته تیارونه.

**پاروونکے** :- (پا + رَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ، اس، فا ع، مذ، وا، ج: پاروُونکي (مؤ، وا: پاروُونکې)] چېړونکے، سوختوُونکے، جنګ جګړې یا مقابلې ته تیاروُونکے، اوچتووُنکے، راپورته کوُونکے، تحریک ورکوُونکے.

**پاره** :- (پا + رَه) [ه، اس، مؤ] و ـــ پارا.

ستا په مخ به خولې څه اودري قرار دے
چې قرار په آئینه نه کا پاره
(معزالله خان)

**پاره** :- (پا + رَه) [فا، اس، مؤ، وا، ج: پارې] (۱) ټکړه، حصه، برخه، ټوټه (۲) د خربوزې یا هندوانې ترازه.

نادانانو هسې دین په دنیا بائیلود
لکه وړکے دُر بدل په پاره نان کړه رحمٰن بابا

**پاره** :- (پا + رَه) [فا، اس، مؤ] څیرې، شلېدلے.

ـــ **کول** :- (اص) ټکړې کول، څیرې کول، شلول.

**پاره پاره** :- (پاره + پاره) [پ، اس، مو] ټوټې ټوټې، ټکړې.

د کتان په دود ئې زړهٔ پاره پاره شي
هر چې کـه د مهرویانو ننداره معزالله خان

ـــ **کول** :- (اص) ټکړې ټکړې کول، ټوټې ټوټې کول، څیرې ویرې کول

ـــ **کېدل** :- (اص) ټکړې ټکړې کېدل، ټوټې ټوټې کېدل، ماتېدل.

**پاره** :- (پا + رَه) [پ] دپاره، برخه.

**پارې پرې** :- (اص) ټوټې ټوټې، ټکړې ټکړې، ذرې ذرې.

**پاریال** :- (پا + رْ + یا + لْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] پرده، پېلار.

**پارېدل** :- (پا + رې + دْ + لْ) [پ، مص لا] قهرېدل، جنګ جګړې ته تیارېدل، په څهٔ وجه چاته غصه کېدل، اوچتېدل، پورته کېدل، سوختېدل. د چا په لمسه یا تحریک نېغېدل.

**پارېدلے** :- (پا + رې + دْ + لَے) [پ، اس، مف، مذ، وا، ج: پارېدلي] په قهر شوے، غصه شوے، جنګ جګړې ته تیار شوے، سوخت شوے.

**پارېدنګ** :- (پا + رې + دْ + نْ + ګْ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـ پارېدنه.

**پارېدنه** :- (پا + رې + دْ + نَه) [پ، حمص] پارېدهٔ، قهرېدنه، سوختېدنه، پارېدنګ، جنګ یا مقابلې ته تیارېدنه، اوچتېدنه، پورته کېدنه.

**پارېدونکے** :- (پا + رې + دُوْ + نْ + کَے) [پ، اس، فا ع، مذ، وا، ج پارېدونکي] قهرېدونکے، غصه کېدونکے، د څهٔ تحریک یا لمسون په وجه جنګ یا مقابلې ته تیارېدونکے.

**پارېده** :- (پا + رې + دهٔ) [پ، حمص] و ـــ پارېدنه.

**پاریس** :- (پا + رِيْ + سْ) [اف: پ، انګ، پیرس، اس، معر، مذ] د فرانس د محنت ځاے، د فرانس یو مشهور ښهر.

**پاریسي** :- (پا + رِيْ + سِيْ) [اف: پ، اس، ص] (۱) د پیرس ښار اوسېدونکے (۲) د پیرس ښار جوړ شوے یا پیرس ښار سره تعلق لرونکے.

**پارینه** :- (پا + رِيْ + نَه) [فا، ص] (۱) زوړ، پخوانے، چې وخت پرې اوړېدلے وي (۲) پروسګنے، د تېر کال (۲) شلېدلے، څیرې.

پارینه چارې چې سر نشته خوشحاله
دا د سر چارې به هم نهٔ وي تر کاله

**پاړ** :- (پا + ړْ) پ، اس، مذ، وا، ج: پاړُونه] کوازه، هغه لرګے چې د ابادۍ په وخت پرې ګلکار اودرېږي. او دېوال خېژي. قوازه، ګوازه.

**پاړ** :- (پا + ړْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: پاړونه] هغه تخته چې د ګرګې یا د څټې غاړو ته اوځي. چې یو طرف ئې صفا او بل طرف ئې شاړ شباړ وي.

**پاړا چنار** :- (پا + ړا + چِ + نا + رْ) [پ، اس، معر] په کُرمه ایجنسۍ کښې د یو ځاے نوم چې مقامي خلق ورته ټُوټکے هم وائي.

**پاړبنج** :- (پا + ړ + بَ + نْ + جْ) [پ، اس، مذ] د یو اونې نوم، څیړۍ، شاه بلو.

**پاړسنګ** :- (پا + ړْ + سَ + نْ + ګْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: پاړسنګونه] و ـ پارسنګ.

**پاړسو** :- (پا + ړ + سو) [پ، اس، مؤ] پارسي یا فارسي ژبه.

**پاړسوب** :- (پا + ړ + سو + بْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: پړسوبونه] پړسوب، د بدن څینې حصه چې د ګذار یا په بل څهٔ وجه د خپل اصلي حالت نه غټه شوې او راپورته شوې وي. ډډون، ډډېدنه.

**پاړسیوان** :- (پا + ړ + سي + وا + نْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: پاړسیوانان (مؤ، وا، پاړسیوانه، ج: پاړسیوانې)] و ـ پارسیوان.

**پاړکے** :- (پا + ړْ + کَے) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: پاړکي] (۱) قطعه، شعر، بیت (۲) فال، پال.

بختیار په پښتو کښې سندرې کړینه اوښې تویوینه
خداے ته نارې کړې، غلبلې کړې، پاړکي لرینه
(تذکرة الاولیاء په حواله د پښتانهٔ شعراء)

**پاړو** :- (پا + ړُوْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] د لرګي سیخ یا ستن چې د مېزرې څپلۍ پرې جوړولے شي.

**پاړو** :- (پا + ړُوْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: پاړوګان] (۱) دم ګرے، هغه سړے چې د ماراتو هوده لرې، په دم مار نیوونکے، (۲) په مار خوړلي دم اچوُونکے او زهر کوزوُونکے (۳) بَدشکله سړے، چرب

زبانه سرے ، په خولۀ خوږ په نيت کوږ (۴) بد چلنه هلک (بازاري)
(۵) چلولي ، خوږ ژبے ، په چالاکۍ خلق تېرباسونکے۔

ستا د زلفو نوم به نور په خولۀ وانۀ خلم
د هوښيار پاړو د تور مار سره څۀ کار خوشحال

**پاړوتوب** :- (پاړو + تو + بْ) [ پ ، اس ، مذ ] د پاړو ګانو کسب ، په دم د مارانو نيولو کار ، پاړوګري ، پاړوګرتوب۔

**پاړوګر** :- (پاړو + ګَ + رْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پاړوګران (مؤ : پاړوګره ، ج : پاړوګرې] و ـــ پاړو۔

**پاړوګرتوب**:- (پاړو + ګَ + رْ + تو + بْ) [ پ ، اس ،مذ] و ـ پاړوتوب۔

**پاړوګري** :- (پاړو+ ګَ +رِيْ) [پ، اس، مؤ، وا ، ج: پاړوګرۍ]و- پاړوتوب۔

**پاړه** :- (پا + ړَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاړې ] (۱) د زمکې هغه حصه چې د يوې د دوؤ کيلونو په مېنځ د اړولو نه پاتې شوې وي (۲) په کار کښې نيمګړتيا ، نيمګړے کار ، هغه کار چې په کښې څۀ برخه پرېښودے شوې وي ۔(۳) د جامو وينځلوتخته ، (۴) لويه غلطي ، د بدنامۍ کار (ظفر) (۵) هغه کوږ لرګے چې شولې پرې د پيکوبغرۍ ته را اړوي (۲) طالع،بخت (۷) افسون ، جادو (۸) د نانبايانو سيخ (۹) هغه پارې يا پاؤړه چې د ځاروؤ د اودرولو د ځاے غوشايان پرې ټولولے شي (۱۰) ب ، خ ډانګه ، پُشتۍ ، د کاڼو دونکاچه۔

يو د زړۀ په پاړه ناست په اخلاص ښۀ يم
نـۀ اتيا تنـه سـوارۀ او پياده وسيم

**پاړه** :- (پا + ړَه) [ پ (عا) ه : پهاړه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاړې ] په حساب کښې د ضرب او تقسيم اسانولو دپاره يو حسابي جدول ماشومان پاړې په يادو کړي او بيا ئې د سوالونو د حل کولو په وخت کښې په کار راولي۔

ـــــ **يا پاړې پوښتل** :- (مص تر) د پاړو امتحان اخستل ، د پاړې ځواب غوښتل۔

ـــــ **يا پاړې تېرول** :- (مص تر) د حساب د قاعدې مقرر جدول په يادو وئيل۔پاړې زوتول ، پاړې يادول۔

ـــــ **يا پاړې زوتول** :- (مص تر) و ـــ پاړه تېرول۔

ـــــ **يا پاړې کول** :- (مص تر) (۱) د پټي اړولو په وخت کښې د کيلونو په مېنځ کښې نااړولي ځايونه پرېښودل (۲) د کار په مېنځ مېنځ کښې څۀ برخې پرېښودل ، نيمګړے کار کول ۔(۳) په کار کښې ناغې کول ، يعني کله کول او کله نۀ کول ، (۴) لويه غلطي يا د بدناموسي څۀ کار کول۔

ـــــ **يا پاړې وئيل** :- (مص تر) پاړې يادول ، د مدرسې ماشومان په زوره زوره او خوږ اواز په جمع د پاړو جدول يادوي۔

ـــــ **يا پاړې يادول** :- (مص تر) و ـــ پاړه تېرول۔

**پاړۍ** :- (پا+ ړَ + ىْ) [ پ ، اس ، مؤ] د هندوانې ، ختکې وغېره ترازه

ـــــ **پاړۍ کول** :- (اص) ترازې ترازې کول۔

**پاړي** :- (پا + ړَ + يْ) [ اف :: پ (قاموس) مؤ] د هوسۍ يو قسم۔

**پاړۍ** :- (پا + ړَ + ى) [ پ (خ) اس ، مؤ ، وا ، ج ] پړۍ ، د کاڼو د ډېري يوه اندازه ، د کاڼو جمع کوونکے مزدور ، په سورو ، اوږدو او اوچتوالي د يوې مخصوصې اندازې مطابق يو ډېرے جوړ کړي چې ورته پاړۍ وائي۔

**پازند** :- (پا + زَ + نْ + دْ) [ فا ، اس ، معر ، مذ] د زرتشت د مذهبي کتاب ژند شرح يا تفسير ، د پارسيانو مذهبي کتاب ، پازند۔

**پـازه** :- (پـا + زَه) [ پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پـازې ] (۱) اثـر ، (۲) چسـتي تېـزي ، مسـتعدي (۳) زړورتيـا ، جـرأت (۴) تتـه رنـا (۵) لحـاظ ، مروت ، حيا ، پاس

ـــــ **تلل** :- (اص) (۱) اثر نۀ پاتې کېدل ، بې پازه کېدل (۲) پخېدل (۳) په زهرو پړسېدل۔

ـــــ **لرل** :- (اص) (۱) زړورتيا لرل ، جرأت لرل ، (۲) لحاظ او مروت لرل (۳) په کار کښې چستي ، تېزي او دلچسپي لرل۔

ـــــ **مړاوې کېدل** :- (اص) (۱) په کار کښې چستي او تېزي نۀ پاتې کېدل ، جَس نۀ پاتې کېدل ، د زړۀ زور نۀ پاتې کېدل ، په کار کښې پخېدل ، کارکښې دلچسپي نۀ پاتې کېدل ، (۲) بې زړۀ کېدل۔

ـــــ **نۀ درلودل** :- (اص) په کار کښې دلچسپي نۀ ښکا ره کول ، په کار کښې پخېدل ، سستي کول۔

**په پازه اچول**:-(اص) (روسي قاموس) (۱) څۀ څيز په کار راوستل يا استعمالول (۲) چا ته نصيحت کول يا سمه لار ښودل (۳) څوک زړۀ ورکول۔

**پازه وال** :- (پازه + وا + لْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : پازه والان (مؤ ، وا: پازه واله ، ج : پازه والې ] پازوال (۱) د کار ملګرے (۲) کاردار ، خدمتګار (۳) معتمد ، محرر ، منشي۔

**پازوال**:- (پا + زْ + وا + لْ) [ پ (روسي قاموس) اس ،مذ] و ـ پازه وال۔

**پازېب** :- (پا+ زې + بْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پازېبونه ] پانزېب پايلې ، د زنانؤ د پښو کالے ، چې واړۀ ګونګروګان په کښې لګېدلي وي او په ګرځېدو کښې ترې د شرنګ اواز خېژي۔

**پازيکه** :- (پا + زِيْ + کَه) [ پ (عا) ص] د پاکيزه اړولے شکل۔

**پاژند** :- (پا + ژَ + نْ + دْ) [ فا ، اس ، معر ، مذ ] و ـــ پازند ۔

**پاژوله** :- (پا+ ژو+لَه يا جو+ لَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ،وا ،ج: پازولې]و ـ پاجوله۔

**پاړۀ**:-(پا + ژْيا پا + ګْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پړسوب ، ډډون۔

**پاړول**:- (پا + ژَ +وْ +لْ يا پا + ګَ + وْ + لْ) [ پ ، مص مت] پړسول ، ډډول۔

**پاړونګ** :- (پا + ژَ + يا ګَ + وَ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ پاړونه۔

**پاړونه** :- (پا+ژَ يا ګَ + وْ + نَه) [ اف: پ (قاموس) حمص] پړسونه ، ډډونه

**پاړونکے** :- (پا + ژَ يا ګَ + وُوْ + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پاړووُنکي ] پړسوُونکے ، پړسوب راوستونکے ، ډډووُنکے۔

**پاړوے**:- (پا + ژَ + يا ګَ + وَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] غرئيز پياز

**پاږه** :- (پا + ژَه يا ګَه) [ پ ، اس ، مذ] د دم اثر ، د هودې تاثير۔

زلفې دې تور مار دے زۀ ئې هسې اُخوړلم
مـرم راباندې نۀ ځي د دم ګرو هېڅ پاږه خوشحال

ـــــ **کول** :- (مص تر) د دم اثر کول ، دم لګېدل۔

**پاړېدل** :- (پا + ژې يا ګې + دْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص لا] پړسېدل ، ډډېدل۔

**پاړېدلے** :- (پا + ژې يا ګې + دْ + لَے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پاړېدلي ] پړسېدلے ، ډډ شوے۔

**پاړېدنګ** :- (پا +ژې+ يا ګې+ دْ+ نْ+ ګ) [اف:پ (قاموس) حمص ] و- پاړېدنه

**پاړېدنه** :- (پا+ ژې + يا ګې + دْ + نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص ] پاړېدۀ ، پاړېدنګ ، پړسېدنه ، ډډېدنه۔

**پاړېدُونکے** :- (پا + ژې + يا ګې + دُوْ + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) مف ،

مذ ، وا ، ج : پاړېدونکي ] پرسېدُونکے ، ډډېدونکے .

**پاړېدهٔ** :- (پا + ړي يا ګي + دَهٔ) و ـــــ پاړېدنه.

**پاس** :- (پا + سْ) [ پ ، ص ] (۱) په ، پر ، دپاسه (۲) بره ، پورته ، اوچت ، په هوا کښې (۳) غوره ، غوريز ، ښهٔ.

زما په شونډو باندې شونډې کښېږده
چې مې تلے روح دے مړي تن له راشي

په نغمه ئې د داود اوسپنه موم کړه
تخت ئې پاس د سليمان وړ په هوا

که اغـــزي وي ســـتا د لاســـه
تـــر ګلونـــــو وي د پاســـــه　　معزالله خان

**پاس**:- (پا + سْ) [ فا ، اس ، مذ ] لحاظ ، خاطر ، رورعايت ، خيال مروت ، قدر.

ـــــ **ساتل يا لرل** :- (اص) لحاظ كول ، رورعايت كول ، خيال ساتل.

**پاس** :- (پا + سْ) [ انګ ، اس ، مذ ] (۱) اجازت نامه ، اجازه (۲) كامياب (۳) دره.

**پاس** :- (پا + سْ) [ اف ، پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پاسونه ] يو قسم ملهم چې د تېلو او چُونې نه جوړېږي . چې د اوښانو پمنتيا او خارښ دپاره استعمالېږي.

ـــــ **دپاسه** :- مح . (۱) د وخت په تېرېدهٔ يا اوړېدو . لكه : دپاسه مازيګر شهٔ (۲) سرسري

ـــــ **كول** :- (مص تر) (۱) امتحان يا مقابله كښې كاميابي حاصلول ، پاسول (۲) د ځينې مقام يا بل روان موټر ، لارې وغېره نه وړاندې كېدل (۳) منظورول ، د وړاندې كاروايۍ دپاره اجازت وركول ، لكه : بَل پاس كول.

ـــــ **كېدل** :- (مص تر) (۱) ځينې مرحلې يا ځاے نه وړاندې تېرېدل (۲) په امتحان وغېره كښې كامياېدل.

**پاسبان** :- (پا + س + با + نْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پاسبانان ، (مؤ : پاسبانه ، ج : پاسبانې) ] (۱) پاسوان ، څوكيدار ، دربان ، حفاظت كوونكے ، په نظر كښې ساتُونكے (۲) شپونكے ، ګډبه.

**پاسباني** :- (پا + سْ + با + نيْ) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاسبانۍ ] پاسواني ، څوكيداري ، درباني ، حفاظت كول ، نظركښې لرل.

ونه د عصيان دې كړه د دين په كور كعبې نهاله
شپه و ورځ كـــړې پـــه څـو څو رنګه پاسباني　　مصري خان

ـــــ **كول** :-(مص تر) پاسواني كول ، څوكيداري كول ، حفاظت كول ، نګهباني كول.

**پاس بُک** :- (پاس+ بُ + کْ) [انګ، اس، مذ ، و، ج : پاس بُكونه يا پاس بكينه ] د بينک يا د ډاكخانې د لېن دېن كتاب ، د حساب كتاب.

**پاسپوټ** :- (پاس + پو + ټْ) [ پ (عا) اس ، مذ ، وا ، ج : پاسپوټونه پاسپوټينه ] و ـــــ پاسپورټ.

**پاسپورټ** :- (پا س + پو + رْ + ټْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پاسپورټونه يا پاسپورټينه ] د خپل ملک نه د بهر تلو د اجازت نامې كتاب.

**پاست** :- (پا + سْ + تْ) [ اف ، پ (قاموس) اس، مذ ] شكريه ، احسان ، تشكر ، مننه.

**پاستهٔ** :- (پا+سْ + تَهٔ) [پ ،ص، ج، وا : پوست] نرم، ملائم، (د سخت ضد)

عاشتان چې تر سر تېر شي هله ښكل كا
د دلـــبرو پـــاسته لب لكـــه مخــمل　　خوشحال

ـــــ **وئيل** :- (اص) نرمه وينا ، خوږې خبرې كول.

**پاستې** :- (پـا +سْ + تَے) [ پ (خ ، ګن ، مو) اس ، مذ ، وا ، ج : پاستې ] (۱) نرم چپاتے ، نرمه پتيره ډوډۍ . (۲) د غوا غوئې د مرۍ لاندې اويزانده نرمه غوښه.

د پېپلو پـــانې خوره نهٔ هغه پاستې
چې ئې خورې د نوكرۍ په شرطونه　　خوشحال

**پاسخ** :- (پا + سَ + خْ) [ فا ، اس ، مذ ] ځواب.

سرفرازه په جهان كښې تر افتاب شوم
چې مې يـــار كا پـــه دشنامو په پاسخ　　معزالله خان

**پاسداري** :- (پـا + سْ + دا + رِيْ) [ فـا ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پاسدارۍ ] رورعايت ، طرفداري ، جنبه داري ، مخ ملاحظه.

**پاسره** :- (پـا + سْ +رَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پاسرې ] (۱) بچت ، ذخيره ، سنجه ، سګه ، پنګه ، توښه (۲) سبب ، سوب ، وجه ، باعث.

ـــــ **كول** :- (مص تر) بچت كول ، بچ كول ، پنګه جوړول ، سنجه كول ، ذخيره كول ، شاته اچول.

**پاسره ګر** :- (پاسره + ګ + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : پاسره ګـري ، (مـؤ : پاسـره ګـره ، ج : پاسـره ګـرې) ] پاسـره وال ، بچـت كوُونكے ، خرڅ په اندازه كوُونكے ، ذخيره كوُونكے ، سنجه كوُونكے ، سګه كوُونكے . كفايت شعار.

**پاسره وال** :- (پاسره + وا + لْ) [اف:پ (قاموس) اس، مذ ، وا] و- پاسره ګر

**پاس شوے** :- (پا س + شْ + وَے) [ پ ، اس ، مف ، ج : پاس شوې]

(۱) كاميـاب شوے،خصوصـاًپه امتحـان كښـې (۲) منظورشـوے، پاس شوے بل (۳) تېر شوے،خورېدلے، وړ اندې تللے.

**پاس كوُونكے** :- (پاس +کَ + وُو + نْ + کَے) [ پ ، اس ، فا ، مذ ، وا ج : پـاس كـوُونكي ، (مـؤ ، وا: پـاس كـوُونكې) ] (۱) كاميـابوُونكے پاسوُونكے (۲) منظور ونكے ، (۳) تېرېدونكے ، وړاندې تلونكے خورېدونكے.

**پاس كونه** :- (پاس + کَ + وْ + نَه) [ پ ، حمص ] (۱) پاسونه ، كاميابونه (۲) منظورونه ، (۳) تېرونه ، خورونه (۴) تېرېدنه ، خورېدنه.

**پاسل** :- (پا + سْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] (۱) پاسلل ، په چا احسان كول ، په چا احسان ښېړول ، چا سره نيكي يا ښېګړه كول ، احسانمند كول (۲) ناجوړه ځاروے مالش كول (۳) لحاظ كول ، خاطر كول او خيال ساتل (۴) سپارل ، حواله كول.

تـهٔ كه خپله رضا پاسلې و قضا ته
غم الم به دې در نهٔ ايشي و خواته　　معزالله خان

**پاسلل** :- (پا+ س + لْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت] و ـ پاسل.

**پاسلے** :- (پـا + س + لْ + لَـے) [ اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج: پاسللي ] (۱) پاسلے ، چې چاسره احسان يا ښېګړه شوې وي . (۲) مالش كړے شوے ځاروے (۳) د چا چې لحاظ شوے وي . چا سره چې مخ ملاحظه شوې وي.

**پاسلنه** :- (پا+ س + لْ + نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص] په چا احسان كونه احسانمند كونه ، ښېګړه كونه.

**پاسلودل** :- (پـا + سْ + لـو + دْ + لْ) [ اف : پ (قـاموس) مـص مـت ] (۱)پاسلول ، سپارل ، حواله كول (۲) منل ،تسليم كول (۳) په چا احسان اړول.

**پاسلودنه** :- (پا+ س+ لو + دْ + نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص ] (۱) پاسلونه

، سپارنه ، حواله کونه (۲) احسان اړونه ، ښېګړه کونه.

**پاسلول** :- (پا + س + لَ + وْ + لْ) [ پ ، مص مت] و ـــ پاسلوول.

رضـــا پـــاسـلـــوه قضا ته

همېش خوښ اوسه خوشنود رحمٰن بابا

**پاسلولے** :- (پا + سْ + لَ + وْ+ لَے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پاسلولي ]

(۱) سپارلے شوے ، حواله کړے شوے (۲) احسانمند کړے شوے.

**پاسلون** :- (پا+ سْ + لُوْ + نْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ] پهره دار ، پهره ورکوُونکے ، څوکیدار.

**پاسلوُنکے** :- (پا+ سْ + لُوْ + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پاسلُونکي ] پاسلُونے ، حوالـه کـوُونکے ، سپارُونکے (۲) د احسان لاندې کوُونکے ، په چا احسان یا ملاحظه کوونکے.

**پاسلونه** :- (پا + سْ + لَ + وْ + نَه) [ پ ، حمص] و ـــ پاسلودنه.

چې د خـضر پـــاسـلـونه درسره وي

واقعي زهر زقوم شي که حېوان خورې عبدالحمید

**پاسلونے** :- (پـا +سْ + لُـو+ نَـے [پ،اس، فـاع، مـذ ، و، ج: پاسلوُني] و - پاسلوُنکے .

چې نمرې د پاسلونې خورې حمیـده

پـه یـوه پرهـر ږدې بـل پرهـر پاسـه

**پاسلیے** :- (پا + سْ + لَے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پاسلي ]و ـــ پاسللے.

**پاسلېل** :- (پا + س + لې + يَ + لْ) [ اف ، پ (قاموس) مص ، مت] پـه چا احسـان یـا نیکي زبـادول ، چاتـه خپلـه نیکي یـا احسـان وریـادول او شرمنده کول.

**پاسلېلي** :- (پا + س + لې + يَ + لَے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا : ج : پاسلېلي ] په چا چې احسان شوے وي. احسانمند کړے شوے.

**پاســلېنه** :- (پـا + سْ + لـې + يَ + نَـه) [ اف : پ (قـاموس) حمـص] احسانمندي ، د احسان لاندې راتلل ، د احسان یا ښېګړې زبادونه.

**پاسلېوُنکے** :- (پا+سْ+لې + يُوْ + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پاسلېیوُنکي ] احسان کوُونکے ، ښېګړه کوُونکے.

**پاسنګ** :- (پا+ سَ + نْ + ګْ) [ پ ، اس ، مذ] و ـــ پارسنګ .

**پاسنه** :- (پا + سْ + نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص] (۱) رورعایت ، لحاظ (۲) احسـانمند کېـدل ، د چـا د احسـان لانـدې کېـدل ، احسـانمندي (۳) د څاروي مالش کول.

**پاسنے** :- (پـا+ سَ + نَـے) [ پ آس ، مـذ . وا ، ج : پاسـني (مـؤ ، وا ، ج پاسنۍ) ] (۱) پورتنے ، د بره ، برنے (۲) پاس یا وړاندې بیان شوے ، (۳) د لوړې علاقې اوسېدُونکے ، د غرونو اوسېدونکے د مېدان یا د سمې اوسېدونکي د سمې مهمند د غرونو اوسېدونکو مهمندو تـه ''پاسني '' مهمند وائي.او هغوی دوی ته ''ښکیني'' وائي.

ـــ **باد** :- (اص (۱) هغه باد چې د قبلې د ډډې وي (۲) د غرهٔ باد .

**پاسنۍ** :- (پا+ سَ +نَۍ) [اف :پ (قاموس) اس، مؤ] د ماشومانو یو مرض

**پاسو**:- (پا+ سو) [ اف : پ (قاموس) ص] کمینه ، خاکسار ، عاجز خویه

**پاســوال** :- (پـــا + س+ وا + لْ) [ اف : پ (قـــاموس) اس ، مـــذ ، وا ، ج: پاسوالان ، (مؤ ، وا، پاسواله ، ج : پاسوالې) ] (۱) بادشاه یا باچا (۲) پاسبان ، محافظ ، څوکیدار.

**پاسوال زے** :- (پا + س+ وا + لْ+ زَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ : پاسوالزۍ) ] شهزاده ، د بادشاه زوے.

**پاســوالي** :- (پـا + سْ + وا + لـيْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج: پاسوالۍ ] (۱) بادشاهي ، باچاهي ، (۲) پاسباني، څوکیداري.

**پاسوالي** :- (پـا+سْ + وا + لـيْ) [ پ ،اس، مـذ] (۱) طرفداري ، لحـاظ ، رورعایت، مخ ملاحظه (۲) سرپرستي ، بادشاهي.

**پاســوان** :- (پـــا + سْ + وا+نْ) [ پ ،فـــا : پاســبان ، اس ، مـــذ ، وا ، ج : پاسوانان (مؤ ، وا ، : پاسوانه ، ج : پاسوانې) ] (۱) محافظ ، سنتري ، پهره دار ، نګهبان ، څوکیدار (۲) شپونکے ، ګډبه.

**پاسواني** :- (پـا + سْ + وا + نيْ) [ پ ، فـا : پاسباني ، اس ، مؤ ،وا ، ج: پاسوانۍ ] حفاظت ، نګهباني ، ساتنه ، څوکیداري .

متل : پئي او د پېشو پاسواني.

**پاسول /پاڅول**:- (پا+ سَ + ولْ) [ پ ، مص ، مت] (۱) پاڅول ، پورتـه کـول اودرول، ولاړول (۲) د خوبـه راویښـول ، رابېـدارول (۳) دم یـا جـادو لـرې کـول (۴) لوسـتل ولاړول (۵) الـوزول .لکـه د ډز سره ئې مرغـۍ پاسـولې (۲) د کلـي یـا د ملـک نـه شـړل .(۷) پـاس کـول ، کامیابول.

نۀ پوهېږم شاګردي د کوم پاړو کړم

چې ئې پـــاســوم د زلفو مـــار له مخه معزالله خان

**پاســولے** :- (پـــا+ سَ + وْ + لَـــے) [ پ ، اس ، مـــف ، وا ، ج : پاســـولي] (۱) راپورته کړے، اودرولے شوے ، ولاړ کړے (۲) راویښ کړے ، بېدار کړے (۳) الوزولے (۴) دکلي یا د ملک نه شړلے شوے.

**پاسوُنکے**:- (پا+سَ +وُ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فاع ، وا ،ج : پاسونکي (مؤ : پاســـوُنکې)] (۱) پورتـــه کـــوُنکے ، اودروُنکـــے ، راولاړوُنکـــے (۲) رابېداروُنکے راویښـوُنکے ، (۳) خط یـا زوړ لیـک لوسـتونکے (۴) الوزوُنکے (۵) د کلي یا د ملک نه شړوُنکے (۲) پاس کوُونکے ، کامیابوُونکے ، د پاس کولو اختیار لرونکے ، (۷) د پاسولو جوګه.

**پاســونه** :- (پـا +سَ + وْ + نَـه) [ پ ، حمـص] (۱) پاڅونـه ، راولاړونـه ، اُودرونـه ، رابېدارونـه (۲) راویښـونه (۳) خـط لوسـتنه (۴) الوزونـه (۵)، د کلي یا د ملک نه شړونکے (۲) پاس کوُونکے ، کامیـابوُونکے ، د پاس کولو اختیار لرُونکے (۷) د پاسولو جوګه.

**پاسونه/پاڅونه** :- (پا + سَ + وْ + نَه) [ پ حمص ] (۱) پاڅونه ، راولاړونه ، اُودرونـه ، رابېدارونـه (۲) راویښـونه (۳) خط لوسـتنه (۴) الوزونـه (۵)، د کلي یا د ملک نه شړنه ، (۲) پاس کونه ، کامیابونه.

**پاســوُونکے** :- (پـــا + سَ + وُوْ + نْ + کَـــے) [ پ ، اس ، فـــاع ، مـــذ ، وا ، ج: پاسوُونکي] و ـــــ پاسوُنکے.

**پاسه** :- (پـا + سـه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاسې ] (۱) خـالص سرهٔ زر هغه سرهٔ زر چې ګډون پکښې نۀ وي. (۲) کره او روغ ، اعتباري.

**پاسه** :- (پا + سَه) [ پ ، ص] و ـــ پاس.

یو پـــه بد عمل کښې ځي تحت الثریٰ ته

بل په ښۀ عمل کښې پاسه په آسمان شي خوشحال

**پاسېدل** :- (پـا + سـې + دْ + لْ) [ پ ، مـص لا] (۱) پاڅېـدل ، راولاړېـدل راپورتـه کېـدل (۲) رابېدارېـدل ، ویښـېدل ، لـه خوبـه چګېـدل ، (۳) لـرې کېـدل ، نۀ پـاتې کېـدل ، لکـه : اعتبـار مـې ترې پاسېدۀ . (۴) الوتـل ، ورتـل ، (۵) د کلـي یـا د ملـک نـه بـل خـواد کـډه کـول (۲) پاس کېدل ، کامیابېدل.

کله پاسم کله کښېنم کله څملم

کله اودرم کله څمه ســر غلطان معزالله خان

**بلا پاسېدل**:- (اص) (۱) بلا لرې کېدل ، (۲) بلا یا افت پېدا کېدل.

**سپک پاسېدل** :- (اص) (۱) زر پاسېدل ، په اسانئ اوچتېدل ، (۲) په ذلت او شرمندګئ د يو ځايه پاسېدل ـ

**پاسېدلے /پاڅېدلے** :-(پا+ سې + دْ + لَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پاسېدلي ] (۱) پاڅېدلے ، پورته شوے ، اودرېدلے ، ولاړ شوے (۲) راويښ شوے ، بېدار شوے ، چګ شوے (۳) د کلي يا د ملک نه په کډه تلے (۴) الوتلے (۵) خط لوستلے شوے ـ

**پاسېدنه** :- (پا + سې + دْ + نَه) [پ ، حمص] (۱) پاڅېدنه ، پاسېدۀ اودرېدنه ، ولاړېدنه (۲) بېدارېدنه ، راويښېدنه (۳) الوتنه (۴) د کلي يا د ملک نه په کډه تلنه (۵) خط لوستنه (۲) پاس کېدنه کاميابېدنه ـ

**پاسېدونکے /پاڅېدونکے** :- (پا +سې+ دُوْ+ نْ+ کَے) [پ ،اس، فا، م، وا،ج: پاسېدُونکي] (۱) پاڅېدونکے ، اودرېدونکے ، پورته کېدونکے ، ولاړېدونکے (۲) بېدارېدونکے ، ويښېدونکے ، چګېدونکے (۳) الوتونکے(۴) د کلي يا د ملک نه شړُونے کېدونکے (۵) خط لوستلے کېدونکے ، د لوستلو جوګه ليک (۲) پاس کېدونکے ، کاميابېدونکے ـ

**پاسېدۀ/پاڅېدۀ** :- (پا + سې + دْ + ۀ) [پ ، حمص] و ـــــ پاسېدنه ـ

**پاشا** :- (پا + شا) [تُر ، اس ، مذ] د ترکو د سردار خطاب ـ

**پاشان** :- (پا + شا + نْ) [پ (روسي قاموس) اس ، ص] (۱) هېر ځاے بې پروا ، چې حاضر دماغه نۀ وي (۲) منتشر خياله ، هغه ځوک چې ذهن ئې ګډ وډ وي ، لېون شُوکے ، لېون شا ـ

ـــــ **کول** :- (روسي قاموس) اص ـ (۱) هېرول (۲) ذهن ګډ وډ کول ـ

ـــــ **کېدل** :- (روسي قاموس) (۱) هېرېدل (۲) ذهن ګډ وډ کېدل ـ

**پاش پاش** :- (پا + شْ + پا + شْ) [فات ، اس ، مر ، مذ] ټکرې ټکرې ټوټې ټوټې ، ذرې ذرې ، بسمې بسمې ـ

د بنو په تېر ئې بيا سره پاش پاش کا
که خپل زړۀ او نۀ پوشم د صبرو زغرې　　خوشحال

**پاشتقي** :- (پا + شْ + تَ + قَي) [پ (روسي قاموس) اس ، مؤ] اندرپايه ، زينه ـ

**پاشتک** :- (پا+ شْ + تَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : پاشتکان] پاشتوک ، واړۀ لرګي چې په چت اچولے کېږي ـ

**پاشتوک**:-(پا+شْ+تو + کْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] و ـ پاشتک ـ

**پاشل** :- (پا+ شْ + لْ) [پ ، مص ، مت ج نوستل ، دانه وانه کول ، ځۀ شے خور وور غورزول ، شيندل ، دوړول ، شنل ـ

**پاشلے** :- (پا + شْ + لَے) [پ ، اس ، مف ، وا ، ج : پاشلي] نوستلے شوے ، خور وور يا دانه وانه غورزولے شوے ، شيندلے شوے ، دوړولے شوے ـ

**پاشنه** :- (پا + شْ + نَه) [پ ، حمص] دوړونه ، نوستنه ، دانه وانه غورزځونه ، شيندنه ـ

**پاشنه** :- (پا + شْ + نَه) [پ ، س : پارشني ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاشنې] هغه وړوکے شان لرګے چې د تمبې ځُوړ پکښې ګرځي ـ

**پاشُونکے** :- (پا + شُو + نْ + کَے) [پ ، اص ،فا ع ، وا ، ج : پاشونکي] نوستونکے ، خور وور يا دانه وانه غورزځونکے ، شيندونکے ، دُوړونکے ـ

**پاغُنده** :- (پا + غُ + نْ + دَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاغُندې] (۱) د نداف د وهلو شوۀ مالوچو يو غُنډارے (۲ هر يو سپين او پوست ځيز (۳) د واورې غونډارے

**پاغُونده** :- (پا + غُو + نْ + دَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاغونډې] و ـ پاغُنده ـ

**پاک**:- (پا + ک) [پ، ص ، مذ ، وا ، ج پاک او پاکان (مؤ ، وا: پاکه ، ج : پاکې] (۱) صفا سُتره ، اچه ، چې دُوړه ، خاورې وغېره نۀ لرې (۲) هغه ځيز ، جامه وغېره چې پليتي نۀ لري (د پليت ضد) (۳) بې ګناه ، نېک پرهېزګاره (۴) بې عيبه ، بې نقصه ، الله پاک (۵) د پاکستان مخفف (۲) بې باقه ، ختم ، (لکه حساب پاکول) (۷) حلال ، جائز ، روا (۸) بېخي ، بالکل ، لکه ډز پرې اوشۀ ، خو هغه پاک بچ شۀ (۹) مکمل ، پوره ، لکه هغه پاک لېونے دے (۱۰) بې وټه ، بې ګډون ، خالص (۱۱) خالي (۱۲) چې هېڅ نۀ لري، غريب، نادار ـ

چې مجلس ؤ د دروحانو
پاک له ګرده د تراب　　مصري خان

تن و ځاے و جامه هله پاک پکار وي
چې ږومبے شي د چا زړۀ له غېره پاک　　رحمٰن بابا

**پاک ارمي**:- (پاک + آر + مِيْ) [انګ ، اس ، مر ، مؤ] د پاکستان فوځ ـ

**پاک ائير فورس** :- (پاک + اي + يَ + رْ + فو + رْ + سْ) [انګ ، اس ، مر ، مذ] د پاکستان هوائي فوځ ـ

**پاکباز** :- (پاک + با + زْ) [فا ، ص ، مذ ، وا ، ج : پاکبازان ، (مؤ : پاکبازه ، ج : پاکبازې) ] (۱) نېک ، پرهېزګار ، متقي ، پاک لمنے (۲) پاکه مينه لرونکے، رښتونے عاشق ـ

پاکبازان کا په نو خطو خپله مينه
د هوا په شنو کوترو بازان ننبلي　　حميد

**پاکبازي** :- (پاک + با + زِيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا] د زړۀ صفائي ، روغ نيت او اخلاص ، پاک لمني ـ

**پاک پروردګار** :- (پاک + پَ + رْ + وَ + رْ + دِ + ګا+ رْ) [فا تر ، اسم معرفه ] (۱) الله پاک (۲) د تعجب يا د ويرې په وخت کښې د ندا توري سره وئيلے شي ـ لکه: يا پاکه پروردګاره ـ

په بزرګئ د هغه پاک پروردګار
موصوف مه شپه په سرې د سرې کار　　رحمٰن بابا

**پاکټ**:-(پا+کَ+ټْ) [انګ ، پاکټ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پاکټونه] جبب ـ

**پاکټ بُک** :- (پاکټ + بُ + کْ) [انګ ، اس ، مر ، مذ ، وا ، ج : پاکټ بُکونه] په جبب کښې د کښېښودو کتابګے ، وړه ډائرې ـ

**پاک دامن يا پاک دامان**:- (پاک +دا+مَ+ نْ + يا دا + ما + نْ) [فا تر، ص (مؤ : پاکدامنه، ج : پاکدامنې] پاک لمنې ، نېک، پرهېزګار ـ

چې معلوم و شاه ته عېن پاکدامن شه
غزال زړۀ ئې ورته لارام وايمن شه　　حميد

**پاک داماني يا پاک دامني** :- (پاک + دا + ما+ نِيْ يا دا مَ + نِيْ) پاک لمني ، پرهېزګاري ، نېکي ، ښۀ سړيتوب ـ

ترناپاکو نارينه ؤ ده بهتره
پادامنه پرهېزګاره رتينه　　رحمٰن بابا

**پاک دل** :- (پاک + د + لْ) [فا ، ص، مذ(مؤ ، وا: پاک دله ، ج: پاک دلې) ] پاک زړے ، نېک زړے ، نېک نيته ـ

**پاک ذات** :- (پاک + ذا + تْ) [فا تر ، ص] الله پاک ، خداے تعالیٰ ـ

**پاک رسول** :- (پاک + رَ + سُو + لْ) [اص] حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ، پاک سرور ، پاک نبي ـ

شفاعت د پاک رسول غواړم اے خدايه
بې له دې مې بله نشته دے دعا　　معزالله خان

**پاکړه** :- (پا+ کْ + ړَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پاکړې] د اوښ کته ، پلاڼ ـ

**پاک زړے** :- (پاک + زَ + ړَے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : پاک زړي ، (مؤ ،

وا: پاک زړې) ] و ـــــ پاک دل.

**پاک ساک** :- (پاک + سا + ک) [پ، ص، مذ (مؤ، وا: پاکه ساکه، ج: پاکې ساکې) ] (۱) صفا سُتره (۲) بې گناه، معصوم (۳) بې غېرته، چې په هېڅ غُصه نۀ ورځي.

**پاکستان** :- (پا + ک + سْ + تا + نْ) [فا، اس، معر، مذ] لُغ: د پاکو خلقو د اوسېدو ځاے، اص: د يو اسلامي ملک نوم چې کال ۱۹۴۷ء د اتمې مياشت په څورلسم تاريخ وجود کښې راغے.

**پاکستانے** :- (پا + ک + سْ + تا + نَے) [پ، اس، ص، مذ، وا، ج: پاکستانيان يا پاکستاني، (مؤ: وا، ج: پاکستانۍ) ] (۱) د پاکستان اوسېدُونکے، پاکستاني (۲) پاکستان سره تعلق لرُونکے يا پاکستان کښې جوړ شوے.

**پاکستاني** :- (پا + ک + سْ + تا + نيْ) [پ، اس ص، مذ، وا، ج: پاکستانيان، (مؤ، پاکستانۍ) ] و ـــــ پاکستانے.

**پاک سرور** :- (پاک + سَ + رُ + وَ + رْ) [اص] و ـــ پاک رسول.

چې ئې لاس د پاک سرور په لاس کښې ونيو

پــــه هغــه لاس ئې بيـا ؤنـۀ کـــړه ستنجا معزالله خان

**پاک طينت يا طينته** :- (پاک + طِيْ + نَ + تْ يا نَ + تَه) [پ تر، ص] پاک نيته، پاک زړے، نېک.

**پاک طينتي** :- (پاک + طِيْ + نَ + تِيْ) [پ، تر، اس، مؤ] پاک نيتي روغ نيتي.

**پاک لمنے** :- (پاک + لَ + مَ + نَے) [پ، ص، مذ، وا، ج: پاک لمني (مؤ، پاک لمنې)] و ـــــ پاک دامن.

**پاک لمني** :- (پاک + لَ + مَ + نِيْ) [پ، اس، مؤ، وا، ج: پاک لمنۍ] و ـــ پاک دامني.

**پاک مولٰی** :- (پاک + مَو + لا) [اس، ص، مذ] خداے پاک، الله تعالٰی

بې هغو چې عاشقان د پاک مولٰی دي

نـــور همه اهـــل هـوا دي دنيا غواړي مصري خان

**پاک نبي** :- (پاک + نَ + بِيْ) [اص] و ـــــ پاک رسول.

انبياء به اُمت پرېږدي ځان به غواړي

پـــاک نبي به خپل اُمت غواړي له تا معزالله خان

**پاک نفس يا پاک نفسه** :- (پاک + نَ + ف + سْ يا نَ + فَ + سَه) [پ تر ص، مذ، مؤ] پرهېزگاره، ځان د بدو نه ساتونکے، نېک.

د غفـلت کـــدورت لرې کړه له زړونو

پاک نفس چې نصيحت کا د بنو وعظ مصري خان

**پـاک نفسي** :- (پاک + نَ + فْ + سِيْ) [پ تر، اس، مؤ، وا، ج: پاک نفسۍ] پرهېزگاري، تقوٰی.

**پاک نويس** :- (پاک + نَ + وِي + سْ) [فا، اس، مذ، وا، ج: پاک نويسان (مؤ: پاک نويسه، ج: پاک نويسې) ] صفا ليکونکے او په اسانه نۀ لوستلے کېدونکے خط صفا ليکُونکے.

ـــــ **کول** :- (مص تر) مسوده صفا کول، چې د لوستلو جوگه شي، پاک نويسول.

ـــــ **کول** :- (مص تر) مسوده صفا کېدل.

**پاک نويس توب** :- (پاک نويس، تو + بْ) [پ تر، اس، مذ] پاک نويسي، د خط صفا ليکلو کار، مسوده صفا کول، چې د لوستلو قابله شي.

**پاک نويسول** :- (پاک + نَ + وِيْ + سَ + وْ + لْ) [پ (روسي قاموس) مص مت] و ـــــ پاک نويس کول.

**پـاک نويسي** :- (پاک + نَ + وِيْ + سِيْ) [پ، تر، اس، مؤ] و ـــ پاک نويس توب.

**پاک نيته** :- (پاک + نْ + يَ + تَه) [پ، اس ص، مذ، مؤ] و- پاک طينت.

**پاک نيتي** :- (پاک + نْ + يَ + تِيْ) [پ، اس، مؤ] و ـــــ پاک طينتي.

**پاک نيوي** :- (پاک + نې + وِيْ) [انگ، اس، مر، مؤ] د پاکستان بحري فوځ يا سمندري بېړه.

**پاکوالے** :- (پا + کْ + وا + لَے) [پ، حمص] (۱) پاکي، ستره والے صفائي، کره والے (۲) چې گډون په کښې نۀ وي (۳) بې گناهي (۴) د حساب بې باقي (۵) د حگړې ختمېدل (۶) بزرگي، زبرگي (۷) فرض غسل کونه.

**پاکول** :- (پا + کَ + وْ + لْ) [پ، مص، مت] (۱) صفا کول، خيري دوړې لرې کول، گندگي او پليتي لرې کول (۲) د غلې يعني غنمو وغېره اچه کول، د غلې نه کاڼي لوټې او گند وغېره لرې کول، (۳) حساب کتاب يا معامله صفا کول (۴) چا سره څۀ نۀ پرېښودل، لکه د پيسو نه يا غلې نه، جامو نه ئې پاک کړم. (۵) پليتي لرې کول.

**د حيا نه پاکول** :- (اص) بې عزته کول، بې ابه کول، شرمول.

**پاکول** :- (پا + کَو + لْ) [انگ، اس، مذ] د مشينې ورۍ يو قسم.

**پاکونگ** :- (پا + کَ + وْ + نْ + گ) [اف: پ (قاموس) حمص] و- پاکونه.

**پاکونه** :- (پا + کَ + وْ + نَه) [پ، حمص] د پاکولو کار، پاکونگ صفا کونه، سُتره کونه، اچه کونه.

**پـاکوُونکے** :- (پا + کَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ، اس، فاع، مذ، وا، ج: پاکوُونکي] صفا کوُونکے، سُتره کوُونکے.

**پاکه** :- (پا + کَه) [پ، ص، مؤ، وا، ج: پاکې] (۱) پرهېزگاره، نېک عمله، پاکيزه (۲) صفا، سُتره.

کـــــه له زنگه آئينه کړې د زړۀ پاکه

گوندې اووينې معشوقه جلوه ناکه معزالله خان

**پاکه** :- (پا + که) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: پاکې] د لوے بر خامتا، پلنه خامتا.

**پاکه پاکۍ** :- (پا + که + پا + کَ + يَی) [پ (سو) اس، مؤ، وا، ج: پاکې پاکۍ] کجيره، ټپسه، مردار خوره مرغۍ.

**پاکه مينه** :- (پا + که + مِيْ + نَه) [پ تر، اس، ص، مؤ، وا، ج: پاکې مينې] بې لوثه او بې غرضه مينه.

صد رحمت دې وي د خداے د دوي په مينه

چې ئې مينــــه وه دا هسې پـــــاکـــــه مينـه حميد

**پـاکي** :- (پا + کِيْ) [پ، اس، مؤ، وا، ج: پاکيانې، پاکۍ] د نايانو چاړۀ، اُستره.

متل: پاکئي ته سر ټيټ کړه. گولۍ ته ئې مه ټيټوه.

ـــــ **کول** :- (اص) فرض وينبنتۀ صفا کول.

**پاکي** :- (پا + کِيْ) [پ، اس، مؤ، وا، ج: پاکۍ] پاکوالے، پاکيزگي، پاکيزتيا، پاکيزولي، پاکيزي.

**پاکېدل** :- (پا + کې + دْ + ) [پ، مص لا] (۱) صفا کېدل، گند، داړه لرې کېدل (۲) د غلې وغېره اچه او صفائي راتلل. (۳) حساب کتاب صفا کېدل (۴) گناهونه توئيدل (۵) بنۀ سړے جوړېدل (۶) فرض غُسل کول (۷) پليتي لرې کول.

**پاکېدنگ** :- (پا + کې + دْ + نْ + گْ) [اف: پ (قاموس) حمص] و- پاکېدنه.

**پاکېدنه** :- (پا + کې + دْ + نَه) [پ، حمص] پاکېدۀ، صفا کېدنه، سُتره کېدنه، اچه کېدنه، پليتي لرې کېدنه.

**پاکېـدونکے** :- (پا + کې + دُوْ + نْ + کَے) [پ، اس، مف، مذ، وا، ج:

پاکېدونکي ] پاکېدُونے ، صفا کېد ونکے ، سُتره کېدونکے اچه کېدُونکے.

**پاکېدونے** :- (پا + کې + دُو + نَے ) [ پ ، اس ، مف ، وا ، ج : پاکېدُوني] و ـــ پاکېدونکے.

**پاکېدهٔ** :- (پا + کې + دهٔ ) [ پ ، حمص] و ـــ پاکېدنه.

**پاکیزتیا** :- (پا + کيْ + زْ + تْ + یا ) [ پ ، اس ، مؤ] و ـــ پاکي.

**پاکیزګي** :- (پا + کيْ + زَ + ګيْ ) [ پ ، اس، مؤ] و ـــ پاکي.

**پاکیزول** :- (پا + کيْ + زَ + وْ + لْ ) [ پ، مص مت ] پاکول ، صفا کول ، پاکیزه کول.

**پاکیز ولي** :- (پا + کيْ + زْ + وْ + لِيْ ) [ پ ، اس ، مؤ ] و ـــ پاکي.

**پاکیزه** :- (پا + کيْ + زَه ) [ فا ، ص ، مؤ ] (۱) پاک ، صفا ، سُتره (۲) بې عیبه ، بې نقصه ، (۳) نېک ، ښهٔ زړے.

**پاکزي** :- (پا + کي + زيْ ) [ پ ، اس ، مؤ ] و ـــ پاکي.

**پاګـل** :- (پـا + ګْ + لْ ) [ ه ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پـاګلان (مـؤ ، پاګلـه ،ج :پـاګلې) ] (۱) لېونے ، چې دماغ ئې خراب وي ـ سودائي ، اتري ، (۲) کم عقل ، نادان.

ـــــ **کـول** :- (اص) (۱) پاګلول ، لېونے کـول ، سودائي کـول (۲) زیـات تنګول او کړول.

ـــــ **کېدل** :- (اص) (۱) پاګلېدل ، لېونے کېدل ،مازغهٔ خرابېدل سودائي کېدل (۲) زیات تنګېدل او کړېدل.

**پـاګلتوب**:-(پـا +ګْ + لْ + تـو + بْ ) [پ، اس ] (۱) پاګلتیـا ، لېونتـوب سودائي توب ، (۲) کم عقلتوب ، کم عقلتیا ، نادانی.

**پاګلتیا** :- (پا+ ګْ+ لْ + تْ + یا ) [ پ ، اس ، مؤ] و ـ پاګلتوب .

**پاګـل خانـه** :- (پاګـل + خا +نَـه ) [ اُر ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پاګـل خـانې] د لېونو ځاے چې علاج ئې پکښې کېږي.

**پاګلول** :- (پا + ګْ + لَ + وْ + لْ ) [ پ ، مص مت ] و ـــ پاګل کول.

**پاګلونه** :- (پا+ ګْ+لْ+وْ+نَه) [پ ، حمص] (۱) پاګل کونه ، لېونے کونه (۲) ډېر تنګونه ، زیات کړونه.

**پـاګلوونکے** :- (پـا + ګْ + لْ + وُوْ + نْ + کَـے ) [ پ ، فـا ، ع ، مـذ ، وا ، ج: پـاګلوُونکي ] (۱) لېـونے کـوُونکے ، مازغـهٔ خرابـوونکے (۲) ډېـر تنګوُونکے ، کړوُونکے.

**پاګلېدل** :- (پ ګْ + لې + دْ + لْ ) [ پ ، مص ، لا ] و ـــ پاګل کېدل

**پاګلېدنه** :- (پا+ ګ+ لې + دْ + نَه ) [ پ ، حمص ] (۱) لېونے کېدنه مازغهٔ خرابېدنه (۲) ډېر تنګېدنه ، کړېدنه.

**پاګلېـدُونکے** :- (پـا+ګْ+لـې + دُوْ +نْ + کَـے ) [ پ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : پاګلېـدُونکي] (۱) لېـونے کېـدُونکے ، (۲) ډېـر تنګېـدونکے ، کړېدونکے.

**پـاګڼ** :- (پـا+ ګْ + ڼْ ) [ پ ، ه ، پهـاګن ، اس ، مـذ ] د بکرمـي سـن یـوه میاشت چې د ژمي په اخر کښې راځي.

**پـال** :- (پا + لْ ) [ پ ، اس ، مـذ ، ج : پالونـه ] (۱) فـال ، قسـمت ، تقدیر (۲) پرهیـز ، ځـان ساتلـ(۳) د یـوې پالـه (۴) د دریـاب یـو وړوکـے چړپاچره (اف ، قاموس).

ـــــ **اچول** :- (اص) پال ایستل ، فال اچول د څهٔ راتلونکي یا پېښېدونکي خبرې په حقلـه د فـال پـه ذریعـه حـا ل معلومـول ، د فـال اچولـو یـا رائستو ډېرې طریقې دي.د مثال پـه طور د قرآن شریف د ایت یـا د چـا دیـوان یـا رحمـان بابـا او فارسـي کښـې دیوان حافظ د شعر نـه مطلب اخذ کول ، یا د کارغانو او د ځناورو په آوازونو او لیدو د ښهٔ او بد انګېرل.

خدا ے نهٔ پال او نهٔ دارو د چا طبیب کوینه
تـر اخر وختـه شکایت د کوم نصیب کوینه — سمندر

ـــــ **ایستل** :- (اص) و ـــ پال اچول.

ـــــ **پرهېز** :- (اص) پرهېز ، د څهٔ خبرې خوړلو یا کولو پابندي.

ـــــ **راختل** :- (اص) و ـــ پال راوتل.

ـــــ **راوتـل** :- (اص) قـرآن شـریف ، دیـوان رحمـان بابـا یـا بـل څـهٔ کتـاب کښې د زړهٔ د مطلب خبره راوتل.

ـــــ **کتل** :- (اص) قسمت کتل ، د قرآن شریف پـه ایـاتونو یـا د چا بـزرګ شاعر په شعرونو او یا د فال ایښتو په کتابونو (فالنامه) کښې د څـهٔ راتـلـونکې یا پېښېدونکې خبرې په حقله کتے شي.

ـــــ **کول** :- (اص) پرهېز کول ، ځان ساتل.

ـــــ **نیول** :- (اص) د پال په ډول د څهٔ کار یا غرض د ښهٔ او بد په حقله په زړهٔ کښې څهٔ ټکے یا نخښه مقررول.

**پالاکـه** :- (پـا + لا+ کـه ) [ اف ، پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، ج : پـالاکې ] پـه زمکه باندې د مار د تېرېدو نخښه یا کرښه .

**پـالان** :- (پا + لا+ نْ ) [ فـا ، اس ، مـذ ، ج : پالاڼُونـه ] پـلاڼ ، مـوړه ، هغـه ټوکرے یا ګدی چې د خر یـا اوښ پـه شـا د حفاظت دپـاره اچولے شي . کته ، ځل.

**پالاني** :- (پا + لا+ نيْ ) [ فا ، س ، مذ ] قچر ، ټټو.

**پـالائے** :-(پا + لا+ئـے ) [ پ (ب ، خ ) اس،مـذ ، وا ، ج : پـالي ] (۱) پلـے ، د موټ ، مهي ، لوبیا او مترو هغه حصه چې دانې پکښې پټې وي (۲)چابي ، نوسے ، کُنجي ، پار ، کیلي.

**پال پې** :- (پا + لْ + پې ) [ پ (ب، خ ) اس ، صو ] و ـــ پاپلې.

**پالتو**:- (پا + لْ+ تُو ) [پ ، ص ] فالتو ، زیاتي ، زیاتي ګړے ، سهوا.

**پالټکس** :- (پا + ل + ټ+ کْ + سْ ) [ انګ ، اس ] (۱) سیاست ، سیاسیات ، د سیاست علم ، (۲) چل ول ، ټګي ټوري.

**پالټي** :- (پا + لْ + ټِيْ ) [ پ (ع) انګ ، پارټي ، اس ، مؤ] و ـ پارټي.

**پـالټي بـاز** :- (پـا + لْ + ټيْ + بـا + زْ ) [ پ ، تـر ، اس ، مـذ ، وا ، ج: پـالټي بازان (مؤ ، وا: پالټي بازه ، ج : پالټي بازې ) ] و ـ پارټي باز.

**پالټي بازي**:- (پا+ لْ + ټيْ + با + زيْ ) [ پ ، اس ، مؤ] و ـ پارټي بازي.

**پالټیشـن** :- (پـا+لِ + ټيْ + شَ+ نْ ) [ انـګ ، اس ، مـذ ] (۱) سیاسـتدان د سیاسیاتو عالِم ، د سیاست په علم پوهېدونکے (۲) اص : چل ولي ، ټګ ، دوکه باز .

**پالسي** :- (پا + ل + سِيْ ) [ انګ ، اس ، مؤ ] پالیسي ، تدبیر ، چل.

**پـالش** :- (پـا + لَ + شْ ) [ انګ ، اس ، مـذ ، ج : پالشـونه ] (۱) د پېـزار د صفایي او پړقولو رنګ (۲) ځلا ، صیقل ، پړق ، رونوالے.

ـــــ **کول** :- (اص ) (۱) د څرمنې ، لرګي یا د اوسپنې څیـز روغني یـات مومي رنګ سره ځلول (۲) خوشامنده کول.

ـــــ **کېدل** :-(اص ) مومي یا روغني رنګ مرلو سره د څهٔ څیز ځلېدل.

ـــــ **ورکول** :- (اص) و ـــ پالش کول.

**پالشي** :- (پا + لَ+ شيْ ) [ پ ، اس ، مذ ، ج : پالشیان] (۱) هغه څوک چې بوټ پېزار پالش کوي.پالش کوُونکے ، (۲) اص : خوشامندګرے.

**پالک** :- (پا + لَ+ کْ ) [ پ ، اس ، مذ] (۱) هغه هلک چې چا لـوے کـړے او پالنه ئې کړې وي.(۲) هغه هلک چې چا په زوے نیولے وي.

بیا له پسته شمس الدین د دهٔ پالک ؤ
چې پـــــه خلقـــو ئې اواز د عدالت ؤ — خوشحال

**پالک** :- (پا + لَ + کْ) [ س ، اس ، مذ ] د ساګو یو مشهور قسم چې اوږدې او پلنې پاڼې ئې وي.

نهٔ د شوم د لاسه سل ببرې خوړلے
نــــهٔ د مــرد د لاسه پاڼې د پالک　　خوشحال

**پالک ملخوځې** :- (اس مر) دا دواړه د ساګو قسمونه دي - چې ځینې خلک ئې یو ځاے پخوي.

**پالکانه** :- (پا + لْ + کا + نه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، ج : پالکانې ] روشندان ، دریڅه.

**پالکورے** :- (پا + لْ + کو + رْے) [ اف ، پ (قاموس) اس، مذ ، ج : پالکوري ] (۱) هغه کوټه چې پکښې د زمیدارۍ اسباب پروت وي - پالکورے او پالنګړۍ قریب قریب یو شیز ته وائي (۲) د زمیدار هغه کورے چې پکښې پاله ، رمبے او لور وغېره کېږدي.

**پالکۍ** :- (پا + لْ + کَۍ) [ ه ، اس ، مؤ ] (۱) هغه ډولۍ چې کلالانو یا بتیارانو به اوړله ، او پکښې به شته مند کښېناستل (۲) هغه ډولۍ چې کلالان یا بتیاران ئې اوړي او ناویانې پکښې راوستے شي (۳) هغه ډولۍ چې په اوښ یا په اتي باندې کښېښودے شي - کجاوه ، (۴) سو - د جوارو فصل د ساتلو دپاره جوړ کړے هغه ځپر شان چې د پټي مالک پاس پرې کښېني او وخت په وخت چغې اوباسي ، دغه شان د غلو غلچکو ، ځناورو او مرغانو نه خپل فصل بچ ساتي.

**پالکۍ** :- (پا + لْ + کَۍ) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ ] یو وړوکے سور رنګې چینجے

**پال ګر** :- (پا + ل + ګَ + رْ) [ پ ، فا : فالګو ، اس ، مذ ، وا ، ج : پال ګران (مؤ ، وا : پال ګره ، ج : پال ګرې ) ] پال کتوُنکے ، د قسمت حال ویوُنے ، نجومي ، توریتي ، ترویتي.

**پال ګري** :- (پا + ل ګَ + رِيْ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ] نجوم ، د غیب علم کونه

**پالل** :- (پا + لْ + لْ) [ پ ، مص ، مت ] (۱) پالنه کول ، تربیت او پرورش کول ، ساتل ، لویول (۲) د دوستۍ او خپلولۍ لوازمات په ښهٔ شان پوره کول ، د دوستۍ پوره حق ادا کول (۳) د چا حقوق ادا کول - لکه لُور خور پالل (۴) خاطر تواضع او خدمت کول ، لکه مېلمه پالل.

**پاللے** :- (پا + لْ + لَے) [ پ ، اس ، مذ ، ج : پاللي ] ساتلے شوے ، تربیت ورکړے شوے ، لوے کړے شوے وغېره.

**پالندوے** :- (پا + لْ + نْ + دُوْ + ئَے) یا (یا + لَ + نْ + دو + یه) [ پ ، اس، مذ ] پالونکے ، لویوونکے ، پرورش کوونکے ، دا لفظ عموماً د الله پاک دپاره استعمالېږي.

**پالنګ** :- (پا + لَ + نْ + ګْ) [ ه ، اس ، مذ ، ج : پالنګونه ] هغه لوے کټ چې پښې ئې روغني او رنګینه جوړې وي - او اکثر په نوارو ښهدلے یا اودلے شوے وي - پلنګ.

چې ئې خــوب په پالنګ نهٔ وُ بې پروله بالښته
راشه ګوره ننداره کړه تر سره لاندې اُومه خښته　　خوشحال

**پالنګ پوش** :- (پالنګ + پو + شْ) [ پ ، فا : پلنګ پوش ، اس ، مذ ، وا : پالنګونه پوشونه ] سوزنۍ ، هغه لوے ، ساده یا ګلدار څادر چې په پالنګ اچولے او غوړولے شي.

**پالنه** :- (پا + لْ + نه) [ پ ، حمص ، ج : پالنې ] ساتنه ، تربیت کونه ، پرورش کونه ، لویونه.

که دا هسې کس پیدا شي د خوشحال پلا سور شي
هېڅ تقصیر بــه ئې ونــهٔ کا په یارۍ او په پالنه　　خوشحال

ــــ **کول** :- (اص) (۱) ساتل ، پرورش کول ، لویول (۲) د دوستۍ خپلولۍ پوره پوره حق ادا کول (۳) اف : غمخواري کول ، غمرازي کول.

**پالوال** :- (پا +لْ +وا +لْ) [ اف : پ (قاموس) اس، ص ] پرهېزګار ، وفادار.

**پالوان** :- (پا + لَ + وا + نْ) [ پ (عا) فا : پهلوان ، اس ، مذ ، وا ، ج: پالوانان (مؤ ، وات: پالوانه ، ج : پالوانې) ] (۱) پهلوان ، د کُشتۍ په چل پوهه (۲) طاقتور ، مضبوط (۳) غټ (۴) بادر تکړه (۵) د دروند سامان اوچتولو کرین.

**پالوده** :- (پا + لُو + دَه) (۱) فالوده ، د یخې کړې او مایه کړې نشاستې مینځې ، چې شربت او واوره ورسره ګډولے او اوړې کښې خوړلے شي (۲) مجازاً د خوراک څهٔ نرم او پوست څیز.

د بــــوسې پـــه هـــوس غم کړم ربوده
بدبختۍ مې وؤیست غاښ په پالوده　　عبدالحمید

**پالوز** :- (پا + لو + زْ) [ پ (وز) اس ، مذ ] هغه درۍ یا قالین چې د ناستې دپاره استعمالولے شي.

**پالو شپه** :- (پا + لو + شْ + پَه) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج: پالوشپې ] شوقدر ، شب برات.

**پالونکے** :- (پا + لُو + نْ + کَے) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، ج : پالونکي (مؤ ، وا: پالونکې) ] د خپلوۍ او دوستۍ حقونه پوره ادا کوُونکے.

**پالونے** :- (پا + لُو + نَے) [ پ ، اس ، فاع ،مذ ، وا ، ج : پالوني ] و- پالونکے

**پاله**:-(پا + لَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پالې ] سسپال ، سسپار ، کراکۍ.

د دهقان فهم پــــه پــاله یا په یم دے
د سپاهي نظر په تُوره په تبر کش وي　　خوشحال خان

**پاله** :- (پا + لَه) [ پ ، ه : پالا ، اس ، مؤ ] چنې ، یخ ، سپین ، هغه واوره شوې غوندې پرخه چې په ژمي کښې پرېوزي.

ــــ **پرېوتل** :- (اص) یخ پرېوتل ، سپین پرېوتل.

**پاله پدري** :- (پاله + پَ + دْ + رِيْ) [ اف : پ (قاموس) حرف ] خامخا ضرور ، اورمرو.

**پالهنګ** :- (پا + لْ + هَ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] هغه لرګے چې د سخې سخۍ تېښتې دپاره غاړه کښې اچوي - ددې لرګي په وجه بچے مور نهٔ شي رودلے.

**پالي** :- (پا+ لِيْ) [ پ ، اس ، مذ ] (۱) (اف : قاموس) د یوې د دوؤ کیلونو تر مینځه چې کوم ځاے د اړولو نه پاتې شي - پاړه (۲) پرهېزانه خوراک (۳) د ماشومانو یوه لوبه ، (اف :قاموس).

ــــ **اچول** :- (اف) اص - د ماشومانو یوه لوبه چې پکښې د لرګي پېزار ( کڼاوي) په یوه پینه باندې لرې غورځوي - د چا پېزار چې روستو پاتې شي - هغه په جمع په وهلو وهلو مات کړي.

**پالي** :- (پا + لِيْ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ] پال پرهېز کوُونکے ، په خوراک کښې خیال ساتوُنکے.

**پالي** :- (پا + لِيْ) [ سنسکرت ، اس ، مؤ ] د مګدهه د علاقې پراکُرت ژبه چې په کښې د بدهه مذهب کتابونه لیکلي شوي وي.

**پالیا کېدل** :- (پا + ل+ یا + کېدل) [ پ ، (صوابي) مص لا ] د یوې کولو په وخت کښې د غوئي پښه په پالا یا سپاره وهلے کېدل یا زخمي کېدل.

**پالېز** :- (پا + لې + زْ) [ فا ، اس ، مذ ، ج : پالېزونه ] د خټکو هندوانو باغ یا پټے

ما توې ښکلي نظر په رقیب باندې
وې کـــودے و مخ ته اینبے د پالېز　　عبدالحمید

**پالېز کاري** :- (پالېز + کا + رِيْ) [فا، اس، مؤ، وا، ج: پالېزکارۍ] د خټکو هندوانو کروندہ، باغواني.

**پالېزوان** :- (پالېز + وا + نْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: پالېزوانان] (۱) د خټکو هندوانو باغ کرُونکے، (۲) د پالېز حفاظت یا ژغورنه کوُونکے، ساتونکے، څوکیدار.

**پالېز واني** :- (پالېز + وا + نيْ) [پ، اس، مؤ، وا، ج: پالېزوانۍ] (۱) باغواني، د خټکو، هندوانو باغ کرنه، (۲) د پالېز د حفاظت یا د ژغورنې کار.

**پالیسي** :- (پا+ لي + سيْ) [انګ، اس، مؤ، وا، ج: پالیسۍ یا پالیسیانې] (۱) پالسي، حکمت عملي، د انتظام طریقه، تدبیر، عقلمندي (۲) چالاکي، چل ول.

ـــــ **بدلول** :- (اص) د خپل کار طریقه بدلول، سلوک بدلول، خوي بدلول.

ـــــ **جوړول** :- (اص) (۱) د کار کولو دپاره لارې چارې ټاکل، د حکمت عملي بنیادي اصول مقررول (۲) ټګي جوړل، د چلول چال خورول.

ـــــ **کول** :- (اص) په چل فریب کار کول، ټګي کول، دوکه کول.

**پالیسي باز** :- (پالیسي + با، زْ) [پ، تر، اس، ص، مذ، وا، ج: پالیسي بازان، (مؤ: پالیسي بازه، ج: پالیسي بازې] (۱) هغه کس چې په حکمت عملي کار کوي. ډېر په هوښیارۍ او چالاکۍ کار کوُونکے (۲) چالاک، چلولي، د بوسو لاندې اوبهٔ بوتلونکے، ټګ، مکار.

**پام** :- (پا + مْ) [پ، فا، فهم، اس، مذ] (۱) چهالیا، ناریل یا د کجورې په شان اونې بوټې چې پاڼې ئې پلنې اوږدې او بې څانګو وي (۲) د لاس تلے.

**پام** :- (پا + مْ) [پ، فا: فهم، اس، مذ] (۱) فهم، فکر، خیال، توجه (۲) بچ، خیال ساته، بچ شه.

ـــــ **اړول** :- (اص) د چا د یو کار یا خبرې نه فکر بل طرف ته اړول.

ـــــ **پام** :- (اس، صو) بچ بچ، خیال ساته.

ـــــ **پرې کول** :- (اص) د چا خیال ساتل، نګراني کول، د نظر لاندې ساتل.

ـــــ **پېکر** :- (اص) خیال توجه.

ـــــ **غلطول** :- (اص) (۱) فکر بدلول، خیال بل طرف ته اړول، (۲) ساعت تېرے کول، وخت اړول.

ـــــ **غلطېدل** :- (اص) (۱) فکر بدلېدل، خیال یا توجه بل طرف ته اوړېدل (۲) ساعت تېرے کېدل، وخت ته دیکه ورکېدل.

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) پام لرل، فکر کول، خیال ساتل، توجه ورکول، هوش لرل (۲) د انتباه یا د خبردارۍ په طور وئیلے شي پام کوه، یا پام کوئ، یا یوازې (پام؟) یعنې خیال ساتئ. ځان ساتئ (۳) خصمانه کول، د مېلمستیا غور یا بندوبست کول. (۴) څهٔ کار یا خبرې ته د بل سرې فکر بدلول، پام وراړول.

ـــــ **کېدل** :- (اص) څهٔ څیز، واقعې یا کار ته د چا فکر یا توجه ورګرځېدل.

ـــــ **لرل** :- (اص) و ـــــ پام کول.

ـــــ **ور اړول** :- (اص) د چا یو خبرې یا کار ته فکر ور اړول.

**په پام سره** :- (اص) خیال سره، فکر او توجه سره، اختیاط سره.

**د پامه وتل** :- (اص) له پامه وتل، د فهم یا فکر نه وتل، هېرېدل.

**له پامه وتل** :- (اص) و ـــــ د پامه وتل.

**پامال** :- (پا+ ما + لْ) [فا، اس، مذ] (۱) پائمال، برباد، تباه، وران، ویجاړ، مات ګډ (۲) په پښو لاندې سولېدلے، چختاړ.

**پامالول** :- (پا + ما + لَ + وْ + لْ) [پ، مص مت] پائمالول، چختاړول، په پښو لاندې سولول، تباه کول، بربادول.

**پامالوُونکے** :- (پا + ما + لَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ، اس، فا ع، مذ، وا، ج: پامالوونکي] پائمالوُونکے، چختاړوُونکے، په پښو لاندې سُولوُونکے، بربادوُونکے، تباه کوُونکے.

**پامالېدل** :- (پا + ما + لې + دْ + لْ) [پ، مص لا] پائمالېدل، چختاړېدل، په پښو لاندې سُولېدل، تباه کېدل. بربادېدل.

**پامان** :- (پا + ما+ نْ) [پ، اس، مخفف] په امان.

**پام پوخ** :- (پام + پو + خْ) [پ، اس ص، مذ، وا، (مؤ، وا، پام پوخه] سست پست، خرمبو، آلسي.

**پام پوخه** :- (پام + پو + خَه) [پ (یوسف) اس، مؤ، وا] خشکي، قحطي، سوراړه، سره، کال، د اوبو نیشتوالے.

**پامته دار** :- (پا + مْ + تَه + دا + رْ) [پ، اس، مذ، وا] په طمعه، طمعدار، د څهٔ څیز وغېره اُمېدوار، په انتظار کښې، حاجتمند، موتاژ.

**پامته داري** :- (پا+ مْ + ته + دا + رِيْ) [پ، اس، مؤ، وا، ج: پامته دارۍ] انتظار، اُمېد، طمع، حاجت، اړیاګیري، موتاژي.

**پامرد** :-(پا+مَ+رْ+ دْ) [فا، اس، مذ، وا، ج: پامردان (مؤ، وا: پامرده، ج: پامردې)] (۱) همتي، بادر، تکړه (۲) مستقل مزاج.

**پامردي** :- (پا+ مَ+ رْ+ دِيْ) (۱) همت، بادري، تکړه توب (۲) مستقل مزاجي.

**پامست** :- (پا + مِ + سْ + ټْ) [انګ، اس، مذ، وا، ج: پامستان] پال ګر، تورېتي، نجومي، هغه کس چې د لاس د تلي د کرښو نه د قسمت وغېره حال معلوموي.

**پامسټري** :- (پا +مِ + سْ + ټْ + رِيْ) [انګ، اس، مؤ] د نجوم علم، د غېبو علم، هغه علم چې د لاس د تلي د کرښو نه پرې د قسمت حال معلومېږي.

**پام لرنه** :- (پام+ لَ+ رْ+نه) [پ، حمص] خیال ساتنه، فکر یا توجه کونه.

ـــــ **کول** :- (اص) د څهٔ څیز خیال ساتل، خصمانه کول، څهٔ څیز ته پام کول

**پام لرونکے** :- (پام + لَ + رُوْ + نْ + کَے) [پ، اس، فا ع، مذ، وا، ج: پام لرونکي] خیال لرُونکے، فکر لرُونکے، خصمانه کوُونکے، توجه کوُونکے.

**پامول** :- (پا+ مَ + وُ + لْ) [پ، مص] فهمول، پوېول، متوجه کول.

**پامولے** :- (پا + مَ+ وْ + لَے) [پ، اس، مف، مذ، ج: پامولي] فهمولے، قیاس کړے شوے.

**پامونه** :- (پا + مَ + وْ + نَه) [پ، حمص] فهمونه، پوهېدنه.

**پاموُونکے** :- (پا + مَ + وُو + نْ + کَے) [پ، اس، فاع، مذ، وا، ج: پاموُونکي] فهموُونکے، پوهېدُونکے، قیاس کوُونکے.

**پامه وُنے** :- (پا+ مَ+ وُ + نَے) [پ، اس، مذ، وا، ج: پامونې] و- پامېدونکے

**پامیالے** :- (پا + مْ + یا + لَے) [پ، اس، مذ، وا، ج: پامیالي (مؤ یامیالۍ)] پوهه، اوښیار، د خبرې وېخ ته رسېدُونکے.

**پامېدل** :- (پا+ مې + دْ + لْ) [پ، فا: فهمیدن، مص لا] فهمېدل پوهېدل، قیاس کېدل.

**پامېدلے** :- (پا+ مې + دْ + لے) [پ، اس، مف، مذ] فهمېدلے، پوهه یا فهم کښې راغلے.

**پامېدنه** :- (پا + مې + دْ + نَه) [پ، حمص] فهمیدنه، پوهېدنه، خیال کښې راتلنه

**پامېدُونکے** :- (پا+ مې + دُوْ + نْ + کَے) [پ، اس، مف، مذ، وا، ج: پامېدونکي] (۱) پامه ونے، فهمېدونکے، پوهېدونکے (۲) فهم او

پوهه کښې د راتلو جوګه.

**پامیر** :- (پا+ میْ + رْ) [ اس ، معر ، مذ] په وسط ایشیا کښې اوچته زمکه (سطح مرتفع) .دې ته بام دنیا وئیلے کېږي .ددې اوچت مېدان نه د همالیه ، چین او هندوکش غرونه په خپل خپل لور خوارهٔ شوي دي.

**پامیرات** :- (پا+ میْ + را + تْ) [ پ (روسي قاموس) اس ، معر] د سطح مرتفع پامیر علاقه او غرونه.

**پان** :- (پا+ نْ) [ ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : پانونه] (۱) یوه ونه چې پلنې پاڼې لري .دې پاڼو باندې کته ، چونه اولګوي او چالیا ، سپینه لاچي او تمباکو پکښې اونغاړي او خوري ئې .چې شونډې او خولهٔ پرې سره شي .لږ شان د نشې اثر هم لري .(۲) د تاش د پاڼو یو رنګ.

مګـر هـالـه لب پـه لبو د یار کېږدي
که څوک ډوب د زړهٔ په وینو لکه پان شي معزالله

**ـــــ خوړل** :- (اص) د پان پاڼه کې کته وغېره لګول او خوړل.

**پاناما یا پانامه** :- (پا + نا+ مه) [ اس ، معر ، مؤ ] (۱) وسطي امریکه کښې د یو ملک نوم (۲) د قطبي او سوېلي امریکې په مېنځ کښې کنستے شوے هغه نهر چې بحر اوقیانوس او بحرالکاهل یو ځاے کوي.

**پان دان** :- (پان + دا+ نْ) [ فا تر ، اس ، مذ ، وا ، ج : پان دانونه ] هغه صندوقچه یا لوښے چې پکښې پان او د پان مساله پرته وي.

**پانـدره** :- (پا + نْ + دْ + رَه) [ پ (یوسف ، اس، مؤ ، وا ، ج : پانـدرې] پاندرۍ ، پاندرے.

**پاندرۍ** :- (پا+ نْ + دْ + رۍ) [ پ ، اس ، مؤ ، ج : پاندرې ] د ریښمو او د تیلې هغه تارونه چې د ناوې په اوربل کښې اچولے شي .پاندرې ، پاندره.

**پاندرې** :- (پا + نْ + دْ + رې) [ پ (یوسف) اس ، مؤ ، ج :وا : پاندره] و ـــــ پاندرۍ.

**پانـډو** :- (پـا + نْ + ډُو) [ ه ، اس ، مـذ ، ج : پانـډوان ] د پانـډ چـې د هستناپور راجه ؤ پینځهٔ زامن ، چې نومونه ئې یُد هشتر ، بهیم ، سهدیو ، ارجن او نکل وُو.

**پانـډو کورونـه** :- (پا+ نْ + ډُوْ + کـو + رُوْ + نَـه) [ پ ، اس ، معـر ، مـذ] د مردان په ضلع کښې د ساول ډهېر سره نزدې د یو کلي نوم دې ته نزدې په یوه غونډۍ باندې یوبل کلے ''کورو بانډه '' نومېږي .

**پانـډه** :- (پـا + نْ + ډَه) [ پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پانـډې ] (۱) د خزلې او خشاک وغېره ټوکرۍ (۲) ب ، پنډ ، پنډه ، پېټے.

**پانډې** :-(پا + نْ + ډِيْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پانډیان ] هغه مزدور چې د خلکو پېټې په مزدورۍ د یو ځاے نه بل ځاے ته وړي.

**پانډې** :- (پا + نْ + ډې) [ ه ، اس ، مذ] (۱) بـامبڼ ، پنـډت ، د بامبڼانو یو خطاب ، (۲) په ځینې علاقو کښې د هندوانو د نوم یوه حصه.

**پاڼ** :- (پا + ڼ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پاڼُونـه ] (۱) بانګ ، د غر کمر ، کچه کمر (۲) د سیند په غاړه هغه زوړند کمر چې وېځ ئې اوبو وړے وي.

متل :- پورته ګور م پړانګ دے .ښکته ګورم پاڼ دے (۳) په کوهي کښې هغه ډډې چې د نؤ په وجه ترې خاورې په غورځېدو وي.

چې پربوځي خوک لـه پاڼه مومیائي درله بویه
په کور کښې چې تیارهٔ شي روښنائي ورله بویه خوشحال

**پاڼ** :- (پا + ڼ) [ پ (سو) اس ، مذ ، وا ، ج : پاڼونه ] (۱) د غم ، بیمارۍ یا د تندې له کبله د شونډو پترے (۲) د اونې پوټ (۳) د لرګي هغه نرۍ تختـه چـې د تنبـل ، غلبېـل یـا سـتار پـه جوړولـو کښې استعمالېږي.

**ـــــ ابستل** :- (اص) د غلبېل ، تنبل یا ستار دپاره د لرګي نرۍ تخته ابستل

**ـــــ نیول** :- (اص) د غم ، بیمارۍ یا تندې له کبله شونډې پترې پترې کېدل.

**پاڼ** :- (پا + ڼ) [ پ (ګن) اس ، مذ ] اب ، د اوسپنې اوبهٔ.

**ـــــ ورکول** :- (ګن) اص ، توره یا بل تېرهٔ څیز ته اب یا اوبهٔ ورکول.

**پـاڼېژ** :- (پـا + ڼ + ږې + ژْ) [ پ (ظفـر) اس ، ص ، مـذ] پـاڼې رېژېـدل .د مني په موسم کښې چې د اونو نه پاڼې غورزېږي.

**پاڼکۍ** :- (پا + ڼ + کۍ) [ پ ، اس ، مؤ ] د پـاڼې اسم تصغیر ، وړه شان پاڼه ، ښغه.

**پاڼکے** :- (پا + ڼ + کے) [ پ ، اس، مذ ، وا ، ج : پاڼکي ] د اندرپایې پاڼکے

**پاڼو** :-(پا + ڼُو) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پاڼوګان ] د یو بوټي نوم، کاهو.

**پاڼوځے** :- (پا + ڼُو + ځے) [ پ (روسي قاموس) اس ، مذ وا ، ج :

پاڼوځي ](۱) د کتابونو د کښېښودو الماری ، (۲) د کتابونو دُکان.

**پاڼه** :- (پا + ڼه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاڼې ] (۱) د اونې پاڼه یا پتـه ، پخه (۲) د کتاب یو ورق یا پته (۳) د تاش یوه پتـه یا پاڼـه ، (۴) د پتې پوله (اف) (۵) پوڼے ، د پینځهٔ ډزي یا یوؤلس ډزي ټوپک هغه پُرزه چې د هغې په ذریعه کارتوسان د ټوپک په ججوره یا مېګزین کښې اچولے کېږي.

کـه سـودا د چـا پېـدا شـي اوبـهٔ وینـي
چـې پـه هـره یـوه پاڼـه څـهٔ رقـم وي

چې پاڼې نهٔ دي چې په اونو پورې ځانګي
دا ئې ژبې ګـوینـــده دي پـــه ثـنــا معزالله

**ـــــ اړول** :- (اص) (۱) د کتاب یا تاش پاڼه یا پته بدلول (۲) خبره بدلول ، پېنتره بدلول ، د چا پام د یو څیز ته بل څیز ته اړول.

**ـــــ د پاسه کېدل** :- (اص) (۱) پاڼه زوره وره کېدل ، د تاش په لوبه کښې اوچته پاڼـه لـرل (۲) قسمت غالـب کېـدل (۳) د تـاش پـه لوبـه کښې اوچتې پاڼې لرل.

**ـــــ زېړېدل** :- (اص) لُغ .د پـاڼې رنګ زېړېـدل ، اص : مـرګ تـه نـزدې کېدل ، پته زېړېدل ، لکه : '' د عُمر پاڼه ئې زېړه شوه ''.

**ـــــ کول** :- (اص) (۱) د تماکو د اوچو بوټو پـاڼې شوکول (۲) د څهٔ بوټي یا اونې پاڼه نیول .

**د پاڼې په شان رپېدل** :- (اص) ډېر زیات رپېدل یا زېړېدل ، زیات یرېدل ، یا ډرېدل.

**د پاڼې په شان رېږدېدل** :- (اص) و ـــــ د پاڼې په شان رپېدل.

**د ګل پاڼـه** :- (اص)(۱) د ګـل ښـکلې پاڼـه (۲) ښکلې معشـوقه ، (۲) نـرم نازک بدن

**پاڼۍ** :- (پا + ڼۍ) [ پ، اس، مؤ ] (۱) د غوزانو (یا د اکوړو) په لوبه کښې د یوې دائرې دننه پراتهٔ غوزان (یا اکوړ) چې لوبغاړي ئې پـه ټيـکانو اولـي (۲) د غوزانـو یـا اکـوړو لوبـه (۳) طبیعـت (اف : قـاموس) (۴) کرښه ، حد (۵) حصه ، وار ، شرکت ، برابرے.

**پاڼۍ نه وتے غوز (اکوړ)** :- (اص) هغه سرے چې د خپلې ډلې نه جدا کـړے شـوے وي .د ډلې یا پرې نه ابستے شوے.

**پاڼي ډال** :- (پا+ ڼي + ډا + لْ) [ پ ، تر ، اس ، ص ، مذ] پاڼي ډال ، د غر هغه اوچته حصه چې د بارانئاوبهٔ پرې دوه ځایه کېږي .په پښتـونخوا کښې د علاقې تقسیم اکثر په پاڼي ډال کېږي.

**پاڼې** :- (پا+ ڼې) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] بخت ، قسمت ، طالع ،

(۲) د پانـه جمـع (۳) د يـو قسـم وابـنـهٔ چې گـل ئـې نـهٔ غـوړيږي يـا نـهٔ سپړدے کيږي۔

**پـانې پـانې کـول** :- (اص) (۱) د کتـاب وغيـره يـوه يـوه پانـه جـدا کـول (۲) کتاب ځيرې کول يا شلول (۳) د څهٔ گل پانې بيلې بيلې شوکول۔

**ـــــ کېدل** :- (اص) (۱) کتـاب وغيـره داسې شلېدل چې پانې ئې سره بيلې بيلې شي (۲) يو يو کېدل ، خورېدل ، (۳) د څهٔ پـه تـلاش کنبـې کبدل (اف : قاموس) (۴) خور وور پرېوتل۔

**پانې تويول** :- (اص) پانې رژول۔

**ـــــ رژول (ربـژول)** :- (اص) پانې تويـول ، پـه خـزان کنبـې د اونې پانې زېرېدو نه پس غورزېدل۔

**ـــــ رژون** :- (اف) اص -پـه خـزان کنبـې د پـانو غورزيـدل ، د پـانو د ريژېدو وخت۔

**ـــــ ريژېدل** :- (اص) پانې غورزېدل ، پانې توئيدل۔

**ـــــ کـول** :- (اص) (۱) د اونـو بوټـو پـانې راټوکېـدل ، (۲) د ونـو پـانې شوکول ، (۳) تاش کول۔

**ـــــ گرځېدل** :-(اص) (اف) اص - پانې اوړېدل - قسمت يا بخت بدلېدل۔

**د چايو پانې** :- (اص) اوچې چائې ، د چائيو هغـه اوچې کړې او پرېکړې شوې پانې چې د چا ئيو د جوړولو دپاره پکارېږي۔ د چائيو پتې۔

**پانې رَژوونکے** :- (پانې + ر + ژَ + وُو+نْ + کَے) [ روسي قـاموس) اس ، فـا ع ، مذ، وا، ج: پانې رژوُونکي ] د پانو غورزوونکے ، پانې څنډونکے۔

**پـانړ ريـژ** :- (پـانړ + رې + ژ) [ پ (روسـي قـاموس) اس ص ] (۱) د پـانو ريژېدل (۲) خزان۔

**پانيز** :- (پانړ + رې + زْ) [ پ ، اس ، مذ (مؤ ، پانيزه) ] (۱) هغه بـوټے چې پانې ورسره وي۔ پانې لرونکے (۲) پانې يا ورقې لرونکے لکـه :- اتـهٔ پانيزه ، ورځ پانه ، (اتو پانو واله اخبار)

**پانسمان** :- (پـا+ نْ + سْ + مـا + نْ) [ اف : پ (روسي قـاموس) اس ، مـذ ] (۱) پټـي (۲) د پټې سامان مرهم وغيره ، فسټ ايډ۔

**ـــــ کول** :- (روسي قاموس) اص۔ پټـي تړل ، فسټ ايډ کول۔

**پانسو** :- (پا+ نْ+سو) [ ه،فا : پانصد ، پنج صد ، اسمِ عد د] پينځهٔ سوه (۵۰۰)

**پانسي** :- (پا+ نْ + سِيْ) [ پ ، ه : پهانسـی ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پانسـې ، پانسيانې ] (۱) تېزندۍ ، دار ، غرغره ، سولۍ ، پـائي ، د پړې هغـه غړوندے يا حلقه چې د بنيادم د وژولو دپاره مرۍ کنبـې اچولے شـي (۲) د مرگ سزا چې د تېزندۍ پـه شـکل کنبـې ورکـولے شـي (۳) هغـه ټکټکۍ او د پړې تېزندۍ چې مجرمانو لـه پړې د مرگ سزا ورکولے شي (۴) مجازاً سخت او ناگواره کار۔

**ـــــ ته خېژول** :- (اص) (۱) پانسي کول ، د پانسي کولو دپاره د پانسـۍ ټکټکۍ تـه خېـژول (۲) پـه تېزنـدۍ مـړ کـول ، غرغـره کـول ، دار يـا سولۍ ته خېژول۔

**ـــــ کول** :- (اص) و ـــــ پانسي ته خېژول۔

**ـــــ کېدل** :- (اص) په تېزندۍ مړ کېدل ۔غرغره کېدل ، په دار يـا سـولۍ کېدل۔

**ـــــ لګول** :- (اص) پانسي لگول ، مجرمانو لـه د مرگ سزا ورکولو دپـاره د پانسۍ ستن ښخول ، سولۍ ، دار يا غرغره لگول۔

**ـــــ لګول**:-(اص) (۱) و ـــــ پانسي کول (۲) د پانسي سزا ورکول۔

**د پانسۍ ټکټکے** :- (اص) دار ، سولۍ ، غرغره ، هغـه ستن چې مجرمـانو لـه د مرگ سزا ورکولـو دپـاره لگولے شـي ۔دې سره پـه مرۍ کنبـې اچولو دپاره پړے او تېزندۍ لگېدلې وي۔

**د پانسۍ کوټـه** :- (اص) (۱) پـه جېـل کنبـې هغـه تنگـه او ورکـوټې کـوټۍ چې د پانسۍ قېدې په کنبې بندساتلے شي۔ (۲) د تکليف ځاے۔

**پانسي کونه** :- (پا نسي + کَ + وْ + نَه) [ پ ، حمص ] غرغره کونه ، دار يا سولۍ ته خېژونه ، تېزندۍ وراچونه۔

**پانسي کېدنه** :- (پانسي + کې + دْ + نَه) [ پ ، حمص ] غرغـره کېدنـه پـه دار يا سولۍ ختنه ، تېزندۍ ور اچولے کېدنه۔

**پانسي کېدونکے** :- (پانسي + کې + دُوْ + نْ + کَے) [ پ ، اس ، مف ، مذ ، وا ، ج : پانسـي کېـدونکي ] غرغـره کېـدونکے ، پـه دار يـا سـولۍ ختونکے ، په تېزندۍ مړکېدونکے۔

**پانسي ورکُوُونکے** :- (پانسي+وَ + رْ + کَ + وُو + نْ + کَے) [ پ ، اس ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج : پانسـي ورکـوُونکي ] (۱) د پانسـۍ سـزا خېـژونکے (۲) هغه چې د پانسۍ مجرم ته غاړې تـه تېزندۍ وراچوي او غرغره کوي ئې۔

**پانسيون** :- (پا+ نْ + سْ + يون) [ اف : پ (روسي قـاموس) اس ،مـذ] (۱) د طالب علمانو د اوسېدو ځاے ، بورډنگ هاؤس (۲) د چا سره پـاتې کېدل يا دېره کېدل (۳) ورکوټے او ارزان بيعه هوټل۔

**پانشنبه** :- (پا + نْ + شَ + نْ + بَه) [ پ ، فا ، پنجشنبه ، اس ، مؤ ] دزيـارت ورځ ، پنځمه ، ادينه ، خميس۔

**پانصدي** :- (پا + نْ + صَ + دِيْ) [ فا ، اس ، ص ، مـذ ] د مغلـو بادشـاهانو يو منصب ، چې د پنځوسوؤ کسانو افسر به ؤ۔

**پــانگراس** :- (پــا + نْ + گَ + را + سْ) [ پ (روســي قــاموس) انــگ Pangreas اس ، مذ ، وا] د گېډې لاندينۍ حصه ، نورة المعده۔

**پانکے** :- (پا + نْ + کَے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پانکي ] (۱) نصب العين ، مقصد ، نقطه نظر ، منزلِ مراد (۲) هغه ډبه چې د کُومې نـه مخـه ويشتے شي (اُتمان بلاق)۔

**پانگ** :- (پا + نْ + گْ) [ پ ، اس ، مذ ] و ـــــ پانړ (۱)

**پـانگوال** :- (پـا + نْ + گْ + وا + لْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ (مـؤ: پانگواله ، ج : پانگوالې) ] پنگه لرونکے ، شتمن ، دولتمند۔

**پانگه** :-(پا + نْ + گَه) [ اف : پ (قاموس) اس ،مؤ ، وا ، ج : پانگې] پنگـه ، سگه، جمع کړے مال ، سر۔

**ـــــ اچول** :- (روسي قاموس) اص۔ پنگه اچول ، سرمايه اچول ، جمعه واري

**ـــــ درلودل** :- (اف) اص۔ پنگه لرل ، مال لرل۔

**ـــــ لرل** :- (اروسي قاموس) اص۔ پنگه لرل ، سرمايه لرل ، مال لرل

**اصلي پانگه** :- (روسي قـاموس) اص۔ اصل زر ، هغـه رقم چې پـه کاروبـار کنبې په اول سر کنبې اولگولے شي۔

**خصوصي پانگه** :- (روسي قاموس) اص ، ذاتي سرمايه۔

**دائمي پانگه** :- (روسي قاموس) اص۔ د گټې پخه او مستقله ذريعه۔

**د بانک پانگه** :- (روسي قاموس) اص۔ د بينک سرمايه۔

**د لگښت پانگه** :- (روسي قاموس) اص۔ د خرڅ کولو سرمايه۔

**طبعي پانگه** :- (روسي قـاموس) اص ۔(۱) جائيـداد ، ملکيـت (۲) دولـت ، قدر و قيمت۔

**مالي پانگه** :- (روسي قاموس) اص۔ مالي سرمايه۔

**پانگه لرونکے** :- (پـا + نْ + گَه + لَ + رُوْ + ْ + کَے) [ پ ، اس ، فـا ، ع مذ ، وا ، ج : پانگه لرونکي ] سرمايه دار ، پانگه ور۔

**پانگـه ور** :- (پانگـه + وَ + رْ) [ پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ] پانگـه لـرونکے، سرمايه دار ، شتمن۔

**پانگـه وري** :- (پانگـه + وَ + رِيْ) [ پ ، اس ، مـؤ] پانگه لرنـه ، سـرمايه

داري ، شته مندي ، دولت مندي۔

**پانو** :- (پا + نو) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] د سور رنګ يو چينجي ، بخملی ، بي بي پاتو۔

**پانوس** :- (پا + نُوْ + سْ) [پ (عا) فا : فانوس ، اس ، مذ ، وا ، ج : پانوسونه] د فانوس وران شکل۔

ټپه: پتنګه خاورې دې په خُلهٔ شوې
ډېوې ته جوړ شو په پانوس کښې بند ځايونه!

**پانه** :- (پا + نَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پانې ] (۱) هغه وړوکې شان لرګې چې يو طرف ئې تېرهٔ شوې وي ۔چې د لرګي چولو يا د اره کولو دپاره په چوند کښې کښېښودې شي (۲) هغه وړوکې شان لرګې چې يوې کښې د تير شاته د کلکولې دپاره ټکولې شي (۳) هغه وړوکې شان لرګې چې موچيان ئې قالب کښې روستو لګوي (۴) هغه وړوکې شان لرګې چې د رندې د اوسپنې شاته لګېدلې وي (۵) يو قسم شکنجه ، چې غل کاسير ته به ئې پکښې سزا ورکوله (۲) چنې ، چنې ، شپېشتې۔

**ـــــ ورکول** :- (اص) (۱) شکنجه کول (۲) د لرګي سورې د پانې په ذريعه ارتول۔

**پانه** :- (پا + نَه) [پ (خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : پانې] لندې ، ليندې ، د لندي مارټوپک هغه حصه چې ګيټ پرې خلاصولې او بندولې شي۔

**پاني** :- (پا + نِيْ) [پ ، اس ، معر ] د پښتنو د يوې قبيلې نوم۔

**پانيات** :- (پا + نْ + يا + تْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پانياتُونه ] عبرت ، نصيحت ، پند۔

زمانې څهٔ نا انصافه راښکاره شوې
پـانيـاتو نـه په دا دور اخرين دي خوشحال

**ـــــ کول** :- (اص) پند ، نصيحت او عبرت اخستل۔

**ـــــ کېدل** :- (اص) څهٔ واقعه وغېره د چا دپاره د نصيحت باعث ګرځېدل

**پانياتي** :- (پا + نْ + يا + تيِ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د پند او عبرت اخستو څهٔ څيز۔ هغه څوک چې د څهٔ نه پند او نصيحت واخلي (۲) هغه سړے ، چې د هغه حال د نورو دپاره د نصيحت او عبرت باعث وي۔

**پاني پت** :- (پا + نِيْ + پَ + تْ) [اس ، مر] د بهارت د کرنال په ضلع کښې د يو ښار نوم۔ دلته درې مشهور جنګونه شوي دي۔
اولنے :- د بابر او ابراهيم لودهي په مېنځ کښې ۱۵۲۶ء
دوېم :- د اکبر او هيمو بقال په مېنځ کښې ۱۵۵۶ء
درېم :- د احمد شاه ابدالي او مرهټو تر مېنځه ۱۷۶۱ء

**پاني ډال**:- (پا + نِيْ + ډا + لْ) [پ (سو) اس ، ص ، مذ] وــ پاني ډال۔

**پاؤ** :- (پا + ؤ) [ه ، اس ، وا ، ج : پاؤونه] (۱) د سېر څلورمه حصه۔ (څلور چټاکې) (۲) د ګېنټې څلورمه برخه ، پنځلس منټه (۳) د روپۍ څلورمه حصه (پخوانے څلور انيز او اوسنۍ پنځويشت پيسې) (۴) د څهٔ څيز څلورمه برخه۔ ¼

**ـــــ باندې** :- اص۔ د څيز څلورمه برخه دپاسه۔ لکه : پاؤ باندې څلور روپۍ ، يعني څلور روپۍ او پنځويشت پيسې ، يا : پاؤ باندې لس سېره ۔يعني لس سېره او څلور چټاکې ۔يا پاؤ باندې درې بجې يعني پنځلس منټه دپاسه درې بجې۔

**ـــــ کم** :- (اص) د څيز څلورمه حصه کمه۔ لکه : پاؤ کم څلور روپۍ ، پاؤ کم درې بجې۔

**ـــــ کښې وهل** :- اص۔ چا نه په ټګۍ سره زياته بيه اخستل ، دوکه کول۔

**نيم پاؤے** :- (اص) د نيم پاؤ وزن ، د دوو چټاکو کانړے۔

**پاؤ تل** :- (پاؤ + تَ + لْ) [پ ، اس ، مذ ]د اُوبلن يا غوړ څيز په تل کښې ناسته برخه۔

**پاور** :- (پا + وَ + رْ) [انګ ، اس ، مذ] طاقت ، زور۔

**پاورق** :- (پا + وَ + رَ + قْ) [فا ، اس ، مذ ] هغه ټکے چې د صفحې په لاندېني ګوټ کښې ليکلے شوے وي او د راتلونکې صفحې اول ټکے وي۔ پخوانو کتابونو کښې په صفحو نمبرې نهٔ ليکلے کېدې۔ د دوؤ الفاظو په ذريعه به د کتاب ترتيب برابرولے شو۔

**پاورقي** :- (پا + وَ + رَ + قيِ) فا ، اس ] (۱) د صفحې لاندې ليکلے شوې حاشيه (فُټ نوټ) (۲) رکاب۔

**پاور هاؤس** :- (پاور + ها + ؤ + سْ) [انګ ، اس ، مر ، مذ] بجلي ګر هغه ځاے چې بجلي پکښې جوړېږي او نورو ځايونو ته ترې تقسيمېږي۔

**پاوکے** :- (پا + وَ + کَے) [پ ، اس ، معر ] (۱) د پېښور ښار په خوا کښې د يو کلي نوم (۲) د پاؤ اسمِ تصغير۔

**پاولے** :- (پاؤ + لَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پاولي ] (۱) يوه زړه سکه ، چې زنانۀ به خپلو غاړو کښې د کالي په ډول اچوله۔ (۲) پخوانے څلور انيز ، د روپۍ څلورمه برخه۔

**پا ولے** :- (پا + ؤ + لَے) [پ ، (ب ، خ + ګن) اس ، مذ ، وا ، ج : پاؤلي ، پاؤليان ، (مؤ : وا ، ج : پاؤلۍ ] (۱) جولا ، په کډې رخت جوړوونکے (۲) کم عقل ، ناپوهه ، متل : ما چې پاؤلے مېږهٔ کوؤ د ګور پر تاڅهٔ حيله مې کوله۔

**پاؤ ليتوب** :- (پا + ؤ + لیِ + تو + بْ) [پ (ب ، خ + ګن) حمص ] (۱) جولا توب (۲) کم عقلتوب۔

**پاؤنډ** :- (پا + ؤ + نْ + ډْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پاؤنډونه ] (۱) پونډ ، د انګرېزانو سکه ، اشرفۍ (۲) د وزن يوه پيمانه چې ۱۲ اونسونه وي پکښې

**پاؤونه** :- (پاؤ + وُنه) [پ ، د پاؤ جمع ] ونډې ، د کلي محلت خلق په جمع يو غوب ځاروے واخلي حلال ئې کړي او غوښه ئې برابر برابر اوويشي۔ دې ته پاؤونه وائي۔

**پاويلين** :- (پا + ويِ + لْ + يَ + نْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پاويلينونه ] پاويليون ، د لوبې ، مېلې يا نمائش په مېدان کښې جوړ کړے شوے عمارت

**پاويليون** :- (پا + ويِ + لْ + يو + نْ) [پ (روسي قاموس) اس] وــ پاويلين

**پاهه**:- (پا + هَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پاهې ]د زخم پټۍ چې ملهم پرې لګېدلے وي۔

**پائي** :- (پا + ئيِ ) [انګ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پايانې] يوه زړه سکه ، چې د پيسې دريمه برخه وه۔ کاسيره ۔په يوه انه کښې به دولس پايانې وې۔

**پـائي** :- (پـا + ئـيِ) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پـائي ګـانې ] تېزنـدې ، د پانسۍ حلقه يا غُوټه۔

**ـــــ اچول** :- (اص) (۱) تېزندۍ اچول ، مرۍ ته پانسي اچول ، (۲) هغه ول يا حلقه شان چې يو خاص قسم غوټه ورکړے شوې وي ۔او راښکلو سره کلکېږي۔

**پائې** :- (پا + ئې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) پښې (۲) اخر ، انجام ، روستاړ ، لکه د کتاب په پائې کښې يا د ژوند په پائې (اخر) کښې (۳) د بيمار صحت موندل او په پښو اودرېدل۔

**ـــــ کول** :- (اف) اص۔ د اوبو پاياؤ يا ژورالے معلومول۔

**په پائي سر کښېښودل** :- (اص) په پښو سر کښېښودل ، د ډېرې عاجزۍ يا د عقيدت اظهار کول.

**له پائي اغزے ايستل** :- (اص) له پښې ازغے ويستل.

**پائي بست** :- (پائي + بَ + سْ + تْ) [فا ، اس مر ، مذ ، وا] د پښو نه تړلے ، پابند ، گرفتار ، په پښو ښکېل.

**پائي بند** :- (پائي + بَ + نْ + دْ) [فا ، اس ، مر ، مذ ، وا (مؤ ، وا: پائي بنده ، ج: پائي بندې) ] و ـــ پابند.

ـــ **کول** :- (اص) و ـــ پابند کول.

ـــ **کول** :- (اص) و ـــ پابند کېدل.

**پائبندونه** :- (پائي + ب + نْ + دَ + وْ + نَه) [پ ، حمص] و ـ پابندونه.

**پائبندونکے** :- (پائي + بَ + نْ + دَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا ، ج: پائبندوونکي] و ـــ پابندوونکے.

**پائبندېدنه**:- (پائي + بَ + نْ + دي + دْ + نَه) [پ ، حمص] و ـــ پابندېدنه

**پائبندېدونکے** :- (پائي + بَ + نْ + دي + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: پائبندېدونکي] و ـــ پابندېدونکے.

**پائي بوسي** :- (پائي + بو + سيْ) [فا ، اس ، مر ، وؤ] و ـ پابوسي.

پائي بوسي به ئې پرې نۀ ږدم
خـــو مې زغمي دشت وپائي  رحمٰن بابا

**پائپ** :- (پا + ئيْ + پْ) [انگ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پائپونه] (۱) نلکۍ ، د اوسپنې يا د بـل څۀ دهات نـل (۲) د تماکو څښلـو ورکوټے شان چيلمگوټے.

ـــ **څښل** :- (اص) په پائپ کښې تماکو څښل.

**پائي پائي** :- (پائي + پائي) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] د ماشومانو په ژبه رو رو تلل.

ـــ **تلل** :- (اف) اص ـ د ماشومانو په ژبه رو رو تلل ، پاپلې پاپلې تلل ، د ماشوم په اول ځل پخپلو پښو گرځېدل يا قدم اخستل. (پنياپل تلل

ـــ **کول** :- (اف) اص ـ د ماشوم په اول ځل پخپلو پښو رو رو تلل يا بوتلل ، پاپلې تلل يا بوتلل ، (په پنياپل تلل يا بوتلل).

**پائپ لا ئن** :- (پائپ + لا + ئيْ + نْ) [انگ ، اس مر ، مذ ، وا ج: پائپ لا ئنونه] د ربړ ، اوسپنې يا سيمټو نه جوړ هغه نل چې اوبۀ يا تېل پکښې د يو ځاے نه بل ځاے ته رسولے شي.

**پائي پېچ** :- (پائي + پې + چْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پائي تاوه هغه ورينه پټۍ چې د پښو نه تاوولے شي.

**پائي تاوه** :- (پائي + تا + وَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: پائي تاوې] و ـــ پائي پېچ.

**پائي تخت** :- (پائي + تَ + خْ + تْ) [فا تر ، اس ، مذ] پايه تخت ، کُوم ښار کښې چې د بادشاه تخت وي ـ د بادشاه د استوگنې ښار ، د گدۍ ځاے ، دارالخلافه ، دارالحکومت ، دارالسطنت.

**پائي ته**:- (پا+ ئي + تَه) [اف : پ (قاموس) ص] په پائي کښې ، اخر ته وروستو ، اخر کار.

ـــ **رسول** :- (اف) اص ـ سرته رسول ، پوره کول.

ـــ **رسېدل**:- (اف) اص ـ سرته رسېدل ، انجام ته رسېدل ، پوره کېدل

**پائڅور** :- (پائي + څْـه + وَ + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ ، وا: پائڅوره ، ج: پائڅورې) ] پائنڅور ، پوچه وار ـ هغه سړے چې د پرتوگ پائنڅې ئې لوئې لوئې وي.

**پائڅوړ** :- (پائي + څْـو + ړْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) اخر او انجام ـ روستو وراندې ، مخکښې روستو ، (۲) د ډلې روستو سړے ، (۳) پاتې څيز ، پاتې شُونے.

**پائڅه** :- (پائي + څْـَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: پائڅې] د پرتوگ پېنڅه ، پوچه.

دا چې گرځي کښېنې پاشي پائڅې لنډې
ښانـــکې وهي دربـــلي څـــربې لنـــډې  خوشحال

**د پائڅې رگ** :- (اص) د ښځې د طرف خپلولي ـ د مور د طرف خپلوان. لکه: د پائڅې رگ پسې تلل ، يا د پائڅې رگ پالل ، يعنې د ښځو يا د مور د طرف د خپلوانو طرفداري کول.

**پائڅه دوړ** :- (پائڅه + دُوْ + ړْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، (مؤ ، وا: پائڅه دُوړه ، ج: پائڅه دُوړې) ] (۱) پائڅه شړپ ، هغه سړے چې د پرتوگ پېنڅې ئې لوئې لوئې وي ـ پوچه وار (۲) مجازاً کم عقل او نادان سړے ، پائڅه شړپے.

**پائڅه شړپ** :- (پائڅه + شْ + ړَ + پْ) [پ ، اس ، مذ (مؤ ، وا: پائڅه شړپه ، ج: پائڅه شړپې) ] و ـــ پائڅه وُوړ.

**پائېدار** :- (پائي + دا + رْ) [فا ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پائېداره ، ج: پائېدارې)] پوخ ، مضبوط ، کلک ، تر ډېرې مودې پائېدونکے ، ټينگ.

**پائېداري** :- (پـــائي + دا + رِيْ) [فـــا ، ص ، مـــؤ ، ج: پائېـــدارۍ] مضبوطوالے ، کلکوالے ، پوخوالے ، ټينگوالے.

**پـــائي دان** :- (پـــائي + دا + نْ) [فـــا ، اس ، مـــذ ، وا ، ج: پائيدانونـــه ، پائېدانينـه] ټانگې وغېره تـه د ورختلو دپاره د پښـې کښېښـودو ځاے.

**پائېدل** :- (پائي + دْ + لْ) [پ ، مص لا] پائېدنه ، ژوندے پاتې کېدنه ، ژوند کونه ، تر ډېرې مودې پاتې کېدنه.

پـــه خالي خيال به ئې څو بې وصل پائي
جدائي ئې په ورد ورد مرگ ته تيار کړے  مصري خان

**پائېدلے** :- (پـائي + دْ + لَے) [پ ، اس ، مـذ ، مـف] (۱) ژونـدے پـاتې شوے ، تر ډېرې مودې پاتې شوے (۲) پائېدار شوے (اف قاموس)

**پائېدنگ** :-(پائي + دْ + نْ + گْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ پائېدنه.

**پائېدنه** :- (پائي + دْ + نَه) [پ ، حمص] ژوندے پاتې کېدنه ، پايښت ، بقا ، باقي پاتې کېدنه ، ډېر عمر موندنه ، پائېدۀ ، پائېدنگ.

**پائېدو** :- (پائي + دو) [پ (روسي قاموس) اس ، فا ع ، مذ] پادو ، پېغام رسوونکے ، سوال ځواب کوُونکے.

**پائېدُونکے** :- (پائي + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: پائېدونکي] ژوندے پاتې کېدونکے.

**پائېدۀ** :- (پائي + دۀ) [پ ، حمص] و ـــ پائېدنه.

**پـــائي روميټـــر** :- (پـــائي +رو + مـــيْ) ټَ+ رْ) [انـگ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: پائروميټرونه] هغه آله چې په گرمولو د سختو دهاتونو د خوځېدلو او راغونډېدلو اندازه پرې کولے شي.

**پائريا** :- (پائي + رْ + يا) [انگ ، اس ، مؤ] د غاښـونو يـو مـرض ، چې پـه اورو کښې نَو اوشي ـ پائيوريا ، غاښ خوره.

**پـائېزار** :- (پائي + زا + رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پائېزارونه] پېـزار ، د پښـو کولو څيز ، پڼه ، څپلۍ وغېره.

چې له ياره سره مست د گلو گشت کړم
محتسب کـــه رانـــزدې شي پائزار شته  خوشحال

**پـائي زېـب** :- (پائي + زې + بْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج: پائي زېبُونـه] د زنانوؤ د پښو يو کالے ، پنزېب.

**پائي کښې** :- (پائي + کښې) [اف : پ (قاموس) ص] و ـ پائي ته.

**پــائېکو** :- (پــائي + کــو) [پ، اس، مــؤ، وا، ج: پائیکوګـانې] (۱) د دمېنچو د جوړولو یو مشین، چَلْ (۲) د شولو صفا کولو مشین، رنګ.

**میخـانیکي (میکـانیکي) پـائېکو** :- (اص) د نـوي زمـانې پـه بجلـۍ وغېـره چلېدونکې پائېکو، د وړېژو مشین.

**پـائېکوټ** :- (پـائي + کو + ټْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: پائیکوټـان] هغـه سړے چې شولې وغېره ټکوي.

**پائېکیلــه** :- (پــائي + کــيْ + لــه) [اف: پ (قـاموس) اس، مــؤ، وا، ج: پائېکیلې] د کر کرونديِ د یو پټي اخري کیله یا حصه.

**پائېګـاؤ** :- (پـائي +ګـاؤ) [اف: پ (قـاموس) مـذ، وا، ج: پائیګاوُونـه] د نیمې قلبې زمکه

**پائېګــاه** :- (پـا ئـي + ګـا + هْ) [فـا، اس، مـذ، وا، ج: پائیګاوُونـه] (۱) جنګي اډه (۲) د غر لمن.

**پـائېلات** :- (پـائي + لا+ تْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: پائېلاتونـه] فسـاد، شر، پتنه،فتنه

**ـــــ کول** :- (اص.فساد کول، شر جوړول.

**پائېلا تي** :- (پائي+ لا+ تِيْ) [پ،اس،ص] فسادي، فتنه ګر، شر جوړوونکے

**ـــــ کېدل** :- اص، شرپسند کېدل، فسادي کېدل.

**پائېلامــــه** :- (پــائي + لا+ مَــه) [اف: پ (قـاموس) اس، مــؤ، وا، ج: پائېلامې] علامه، نخښه (خصوصاً د قيامت).

**پائېلـټ** :- (پـائي + لَ + ټْ) [انګ، اس، مـذ، وا، ج: پائېلټـان، (مـؤ: پائېلټه، ج: پائېلټې)] هواباز، هوائي جهاز يا الوتکه چلوونکے.

**پائېلوټ** :- (پائي + لو+ ټْ) [(روسي قـاموس) اس، مذ، ج: پائېلوټـان] پائېلټ، هواباز.دې سره متعلق ټول الفاظ پيلوټ کښې اوګورئ.

**پائېلوړ** :-(پائي + لو + ړ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] لټون، تلاش

**پائمال** :- (پائي + مـا + لْ) [فارسي مرکب] (۱) د پښـو لاندې مښـلے، دل شـوے، غوبـل شـوے، لتـاړ شـوے، سُولېدلے.(۲) هغـه خيـال چې ډېر ځله په شعرونو کښې اغوښتے راغوښتے وي.

که فلک دې تاج په سر د لوئي کښېښنو
پــه خــوارئ به دې تر خاورو که پائمال    معزالله خان

**پائېمال** :- (پائي + ما + لْ) [اس، معر] د هزارې کوهستاني علاقه کښې د اباسين په غاړه يو مشهور کلے چې پکښې يو ډېر لوے ولي تېر شـوے دے پائېمـال بابـا .د هغـه متعلق دا يـوه رښـتينې واقعـه مشـهوره ده چې د هغـهٔ زيـارت تـه دوه درې سـوه کالـه پـس سـيند اورسېدهٔ .نو هغه خپلو نوسو ته په خوب کښې حضور شو، چې ما دلته نه اوباسئ، بل ځاے کښې مې ښخ کړئ.هغوي چې د قبر نه وويستهٔ نو داسې اماني پروت ؤ چې کفن ئې هم نهٔ ؤ دُریا شوے.

**پائېمالي** :- (پائي + مـا + لِيْ) [فـا، اس، مؤ] (۱) د پښـو د لاندې مښـلے کېدنـه، دل دُول کېدنه، سُولېدنه.(۲) ذليل کېدنـه، رسوائي، بې عزته کېدنه.

نمر چې کاندې ستا له مخ سره سيالي
ځکه مــومي لــکــه خـــاورې پائمالي    معزالله

**پائېناب** :- (پائي + نا + ب) [فا تر، اس، مذ] هغه پټے چې د ولې په اخر کښې وي او د اوبو وار ئې روستو راځي.د سرې ورځ اپوټه.

په اپي کښې لاهم وي خو نه ويرانه
هغه کلے چې د بل کلي پائناب وي    رحمٰن بابا

**پـائې نخ** :- (پـائي + نَ + خْ) [اف: پ (قـاموس) اس، مذ] د انګورو هغـه ځيلۍ چې د انګورو ګوچه ورسره ځوړنده وي.

**پائېنده** :- (پا+ ئِي + نْ + دَه) [فا، ص] پائېدونکے، پائېدار، مضبوط، قائم پاتې کېدونکے.

هېڅ مقراض ئې غوڅولے په خولهٔ نهٔ شي
هــر پېونــد چې پائېنده کانــدې اخلاص    عبدالحميد

**پائېنده باد** :- (پائېنده + با + د) [فا، اس، مر، مذ] همېشـه ژونـد ے اوسې، تل تر تله قائم اوسې.

**پائېنده خان** :- (پائېنده + خا + نْ) [پ، اس، معر] (۱) د پښـتنو يو نوم (۲) د افغانستان د بادشاهانو د يو نيکه نوم.

مړنې د مهمند زوهــم اورېدهٔ شي
ولې نهٔ به پائنده خان شي نهٔ لښکر    مصري خان

**پائېنده خېل** :- (پائېنده + خې + لْ) [پ، اس، معر، مذ] د پښـتنو د خېـل نوم چې د پائېنده نيکه اولاد دے.

**پائېنـــک** :- (پـــائي + نَ + کْ) [اف: پ (قـــاموس) اس، مـــذ، وا، ج: پائېنکونه] د توري وغېره په کاتۍ يا تېکے ګُلکاري.

**پـائېنو** :- (پـائي + نُـو) [پ (روسي قـاموس) اس] لاندې نښـوتې زمکـه، نشيبي زمکه.

**پاياب** :- (پا + يا + بْ) [فا، اس، مذ] پاياؤ، هغه درياب چې بغېر د پُـل يا کشتـۍ نه خلق پرې پورې وتے راپورې وتے شي.

هېڅ پاياب د فن فرېب ئې مونده نهٔ شي
څــوک بـــه څــهٔ غـــواړي د بحر پايابونه رحمٰن بابا

**پايــان** :-(پـا + يـا + نْ) [فـا، اس، مـذ] اخـر، انجـام، حـد، خاتمـه، روستاړېر.

**بې پايان** :- (اص) بې انتها، چې اخر ئې نهٔ وي معلوم، ډېر زيات.

**پاياؤ** :- (پـا + يـا + ؤ) [پ، اس، مذ] (۱) پايـاب، دومره اوبـهٔ چې پښـه پکښې لګېدے شي (۲) د اوبو ګودر (۳) د اوبو سر، حد، انجام، د څهٔ څېز انجام

**پائېښت** :- (پا + يَ + شْ + تَ يا پا + يَ + خْ + تْ) [پ، اس، مذ] پائېدنـه، بقا، ژوندے پاتې کېدل.

**ــــــ کــول** :- (اص) تــر ډېــره وختــه يــا مــودې پائېــدل، اســتحکام او مضبوطيا لرل.

**ــــــ لرل** :- (اص) تر ډېرې مودې پائېدل، استحکام لرل، مضبوطوالے لرل

**پايل** :- (پا+ يَ + لْ) [پ (ب، خ) اس، مؤ، وا، ج: پايلې] اواره زمکه، په يو مخ پرته زمکه چې د کرونديِ جوګه وي.

**پايــل** :- (پــا + يَ + لْ) [اف: پ (قـاموس) اس، مــذ] د جــوارو ډوډۍ، سوکړک، سوړسک، ډوډۍ.

**پايله** :- (پا + يْ + لَه) [پ، ه: پايل، اس، مؤ، وا، ج: پائيلې] (۱) پائې زېب، د زنانؤ د پښو کالې، د کونترو د پښو کالے.

د پـــائېــلو د شړائې جرنګهار شهٔ
زهٔ له خوبه راپرتاب شوم ډېر په وير    خوشحال

**پاينـــدے** :- (پـــا + ي +نْ + دَے) [اف: پ (قـاموس) اس، مــذ، وا، ج: پاينــدي (مـؤ، وا: پاينـدۍ)] (۱) پائېـدونکے څيـز، بـاقي پـاتې کېدونکے څيز، ژوندے پاتې کېدونکے(۲) کامياب.

**پاينه** :- (پا + يْ + نَه) [پ، حمص] پائېدنه، باقي پاتې کېدنه، بقا.

**پـاينے** :- (پـا+ يْ+ نَے) [اف: پ (قـاموس) اس، مـذ، وا،ج: پـايني (مـؤ: پايني)] روستنے، اخرنے، اخري، د ټولو روستو، روستو سر کښې، روستاړ.

**پایو** :- (پا + یو) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] وړوکې شان د لرګي هغه ټوټه چې د کبانو نیولو تار سره تړلې وي .دا د اوبو دپاسه وي او کُنده اوبو کښې ډوبه وي . کله چې دا ټوټه اوبو کښې ډوبه شي ، نو ښکاري پوهه شي چې مهی کُنده کښې ننښتے دے .

**پایول** :- (پا + يَ + ولْ) [پ ، مص] (۱) ژوند ورکول ، ژوندے ساتل ، لویول (۲) د اوبو پایاؤ معلومول (۳) مېشتول ، ډېره کول (۴) ختمول ، سرته رسول .

**پایولے** :- (پا + يَ + وْ + لَے) [پ ، مف ،مذ ،وا ، ج : پایولي (مؤ: پایولې) ](۱) چاله چې ژوند او بقا ورکړې شوې وي . عمر ورکړے شوے ، ژوندے ساتلے شوے (۲) مېشت کړے شوے دېره کړے شوے .

**پایونګ**:- (پا + يَ + وْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص ]و ـ پایونه

**پایونه** :- (پا + يَ + وْ + نَه) [پ ، حمص] (۱) ساتنه ، ژوندے پاتې کېدنه ، پایونګ ، ژوند ورکونه (۲) مېشتونه ، دېره کونه

**پـــایوونکے** :- (پـــا + يَ + وُوْ + نْ + کَـــے) [پ ، اس ، فـــاع ،مـــذ ، وا ، ج:پایوُونکي] (۱) ژوند ورکوونکے ، عمر ورکوونکے ، ساتونکے . (۲) پـرورش کـوونکے ، پـالونکے ، (۳) اص : خـداے پـاک (۴) دېـره کوُونکے ، مېشتوُونکے .

**پایـه** :- (پـا + يَـه) [فـا ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پـائې] (۱) درجـه ، مرتبـه ، قـدر ،عزت (۲) د ستنې د ودرولـو دپـاره پـوخ جـوړ کـړے وېـخ (۳) د ګټـو خښتـو نـه جـوړه سـتن (۴) ب ، خ : پهیـه ، تېـر ، ارینـائے چُـور لېدُونکے څیز ، پل .

چې د بل د پاره ځان سېزې حمیده
تــل ئې دي لکـه د شمعې پایه بره عبدالحمید

**ــــــ په پایه** :- (اص) درجه په درجه ، پوړی په پوړی .

**ــــــ ثبوت ته رسول** :- (اص) خبره ثابتـه ول ، د بیـان یـا څـهٔ خبرې دلیـل پیدا کول .

**په اوچتو پایو کښې** :- (اص) مغرور ، پورتـه پورتـه ګرځېدونکے ، ځان تـه غاوره ، د یـو سړي چې حالت ښـهٔ شي او بیـا زړو ملګرو تـه سپک ګوري یا ئې هېر کړي نو د هغه پحقله وئیلې شي ، چې په اوچتو پـایو کښې ګرځي .

**په پایه ولاړ** :- (سو) اص . (۱) په پهیـې ولاړ یـا اودرېـدل (۲) ډز تـه تیـار ، ډک ټوپک .

**د اوچتې پایې**:-(اص) د اعلی درجې،د لوئې مرتبې ، د اوچت معیار

**د عرش پایه لړزول** :- (اص) د دُعا یا د فریاد اثر عـرش تـه رسېدل ، د زړهٔ د تاوه دُعا غوښتل ، د مظلوم فریاد .

**پایه تخت** :- (پا + يَه + تَ+ خْ + تْ) [فا ، اس ، مذ] و ـ پائې تخت

**پب** :- (پَ + بْ) [اس ، معر] د بلوچستان او د سندهـ پـه پولـه د غرونـو د یوې سلسلې نوم .

**پبلســـتي** :- (پَ + بْ + لِ + سْ + سِ + تِـــيْ) [انـــګ ، اس ، مـــؤ ، وا] (۱) مشـهوري، شـهرت ورکـول ، مشـهورول (۲) نشـر و اشـاعت ، (۳) پراپېګنډه .

**پبلش** :- (پَ + بْ + لِ + شْ) [انګ ، اس ، مذ] چاپ، شائع، خور

**ــــــ کول** :- مص تر ، (۱) چاپ کول ، شائع کول (۲) د چاپ کولـو نـه پس خورول

**پبلشر** :- (پَ + بْ + لِ + شَ + رْ) [انګ ، اس ، ے مذ ، وا ، ج : پبلشران یا پبلشرون (مؤ ، پبلشره ، ج : پبلشرې یا پبلشرانې)] د کتـاب ، اخبـار ، رسالې او دغسې د نورو څیزونو چاپ کوُونکے یـا شـائع کـوُونکے ، خوروُونکے ، ناشر .

**پبلــک** :- (پَ + بْ + لِ + کْ یـا پَ + بْ + لَ + کْ) [انـګ ، اس ، مـذ ، ] اولس ، عام خلک ، عوام ، قام .

**پبلک پراسیکیوټر** :- (پبلک + پْ + را + سِيْ + کیو + ټَ رْ) [انګ اس، مذ ، وا ، ج : پبلک پراسیکیوټران] سرکاري وکیل .

**پبلــک ســروس** :- (پبلـک + سَ + رْ + وِ + سْ) [انـګ ، اس ، مـذ] (۱) د عوامو خدمت (۲) سرکاري ملازمت .

**پبلک سروس کمیشن** :- (پبلک سروس + کَ + مِيْ + شَ + نْ) [انګ اس ، مـذ ، وا ، ج : پبلـک سـروس کمیشـنونه] د حکومـت د طرفـه مقـرر شوې هغه جرګه یا اداره چې د اعلی ملازمتونو دپاره امتحان اخلي او انتخاب کوي .

**پبلک ورکس ډیپارټمنټ** :- (پبلک + وَ +رْ +کْ + سْ + ډِيْ + پا + رْ + ټ+ مِ + نْ + ټْ) [انګ ، اس ، مذ] د بارک ماسټری محکمـه ، هغـه محکمـه چې سرکاري عمارتونه ، سړکونه او نهرونه وغېره جوړوي . عام طور سره دې ته پي ډبیلو ډي وائي .

**پبله پوري** :- (پَ + بْ + له + پو+ رِي) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پـه یـو بل پورې ، یو بل سره لګېدلے ، پېوست ، جُخت .

**پبلیکېشــن** :- (پَ +بْ + لِـيْ + کـې + شَ + نْ) [انـګ ، اس،مـذ] چـاپ، اشاعت ، خورونه .

**پبي** :- (پَ + بِيْ) [پ ، اسم ، معر] د پېښـور او نوښار پـه مېنځ کښې د یو کلي نوم

**پپ** :- (پَ + پْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : پپونه] د ناوېې پـه شان یو اله ، چې دکاندار پرې څهٔ څیز واخلي او پوړو او لفافو کښې اچوي ، بمبو .

**ــــــ کول** :- مص تر ، ښکلول ، (د ماشومانو په ژبه کښې) پپـه اخستـل ، چپې کول .

**پپخـه** :- (پَ + پْ + خَـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پپخـې] قراقلي ټوپی ، (دا ټکے د پخې نه جوړ شوے دے) .

**پپرمنټ** :- (پ + پَ + رْ + مِ + نْ + ټْ) [انګ ، اس ، مذ] د پـودینې ست ، خوږې ګولی .

**د پپر منټو ګولی** :- (اس) خوږې شان ګولی ، د ماشومانو خواږهٔ .

**پپړ غوږ** :- (پْ + پَ + ړْ + غْ + وَ + ژْ یا ګْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو قسم غرئیز وابښهٔ یا ګیا .

**پپنا** :- (پُ + پَ + نا) [پ ، اس] پُوپنا ، فوفنـا ، بالکل ، برباد ، نیشت نابود

**ــــــ کول** :- مص تر .پُوپنا کول ، بالکل فنا کول ، بېخي روکول ، تباه کول . نیست کول ، جړه ویستل ، مونډ یستل ، بېخ یستـل بُن څټ یستل .

**ــــــ کېدل** :- مص تر .پُوپنا کېدل،بالکل فناکېدل ، بېخي روکېدل ، بربادېدل ، تباه کېدل ، بېخ وتل ، جرې وتل ، مونډ ختل

**پپوس** :- (پَ + پُـو + سْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پپوسُونه یـا پپوسان] (۱) د پړپوس مخفف ، سړے ، سړے ، (۲) سست پست او بې خونده سړے .

**پپی** :- (پَ + پَی) [پ ، اس ، مؤ] (۱) بوسه ، پپه ، ښکلول ، چپې (۲) د پـاپی مخفف ، پښـه (د ماشـومانو پـه ژبـه) (۲) مجازاً یـا طنـزاً وړه نازکه پښه .

**پپیتـه** :- (پَ + پِيْ + تَـه) [ه ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پپیتـې] یـو قسـم خوږه

مېوه چې د خټکي په شان وي ، د وُنې خټکے.

**پت** :- (پَ + تْ) [پ ، اس ، مذ] (۱) ابرو ، عزت ، ناموس ، عظمت وقار (۲) وفا ، د دوستۍ پالنه.

د اشنا د مينې پت بــــه مې مات نۀ شي
که مې سر له تنه دُرومي په دا پت کښې رحمٰن بابا

پــه اميد د پــلار د زوئې سره پرې کا
څوک دې نۀ غواړي سازش د زمانې خوشحال

**ـــــ پالل** :- (اص) وفاداري ښکاره کول ، په ښۀ او بد حالاتو کښې د دوستۍ په ننګ ټينګ پاتې کېدل ،

**ـــــ خوړل** :- (ب ، خ) اص. (۱) بې وفائي کول ، بې پتي ښکاره کول ، بې پته کېدل (۲) دروئې کول ، دوکه کول.

**ـــــ ساتل** :- (اص) د عزت او ابرو خيال ساتل (۲) وفاداري کول

**په پت کښېناستل** :- (اص) (۱) د خاوند د مړ کېدو نه پس د ښځې د هغه د عزت او ننګ دپاره په کور کښېناستل او بل خاوند نۀ کول. په پت کښې سر سپينول (۲) د ورک چنغول په عزت او مينه کښې د يوې چنغلې ځان زړول.

**په پت کښې سر سپينول** :- (اص) و ــ په پت کښې کښېناستل.

**پت** :- (پَ + تْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د ګډو بزو د اوږدو ويښتو د لاندې نرم پشم چې پټوګان ترې جوړېږي.

**پت** :- (پْ + تْ) [پ ، تابع مهمل] دا توری "ټت" سره يو ځاے استعمالېږي. لکه : ټت پت مه کوه.

**پتارۍ** :- (پَ + تا + رَۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د مړو د لمبولو تخته ، د غسل ورکولو تخته.

**په پتارۍ کول** :- (اف) اص. چاله سخته سزا ورکول.

**پتارۍ** :- (پَ + تا +رَ + يَۍ) [پ (کن) اس ، مؤ] معمولي پوله ، نرے بريد ، وړه شان پوله.

**پتاړ** :- (پَ + تا + ړْ) [اف : پ (قاموس) ه : پټاري ، اس ، مذ ، وا ، ج: پټارونه] هغه ټوکرۍ چې خولۀ ئې وړه وي.

**پتاسه** :- (پَ + تا + سَه) [پ ، ه : بتاسا يا پتاشا ، اس ، مؤ ، وا ، ج: پتاسې] سپين شان خواږۀ يا مټهائي.

**د پتاسو باران** :- (اص) په مفتو کښې څۀ فائده يا خوشحالي موندل

**پتانۀ** :- (پْ + تا + نۀ) [پ ، اس ، مذ] د پټون اضافي حالت. لکه : د پتانۀ سترګه.

چې هوس کړي د ګل رخ د پتانۀ
پــه ســرمــه تړه دغه پټۍ درانۀ عبدالحميد

**پتاڼ** :- (پ + تا + ڼ) [پ (ب، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : پتاڼونه] لار ، ګودر ، پتڼ ، پتړ

**پتاؤ** :- (پِ + تاؤ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پتاؤونه ، پتاوي] (۱) نمر غارمۀ ، پيتاؤ ، پيتاوے (۲) د غر هغه اړخ چې نمر ته مخامخ وي

**ـــــ ته کښېناستل** :- (اص) (۱) نمر ته کښېناستل ، غرمو ته کښېناستل ، پتاوي ته کښېناستل (۲) د څۀ کار نه ځان بې غرضه کول ، بې کاره کښېناستل.

**ـــــ کول** :- (اص) و ـــــ پتاؤ کول.

**پتاوې** :- (پِ + تا + وې) [پ (خل) ص ، مؤ ، ج] مشروټې خبرې دُوړې ، فتاوې ، ډُوزې

**پت پت** :- (پْ + تْ + پْ + تْ) [پ (ب ، خ) اس ، صو] پرت پرت ، پړت ، پړت ، ټرت ټرت ، ټرتهار ، پرله پسې د تيز اواز ، پرتې پرتا.

**ـــــ کول** :- مص تر. پړتېدل ، پړت پړت کول ، ټرت ټرت کول ، ټرتهار جوړول ، پرله پسې تيزونه اچول.

**پت چو** :- (پَ + تْ + چَو) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پت چوګان] د کتابونو بسته.

**پتخول** :- (پَ + تْ + خَ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص ، مت] پرخيال مريض خوَلې کول.

**پتخه** :- (پَ + تْ + خَه) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج : پتخې] تماچه ، توپنچه.

**پتخه** :- (پَ + تْ + خَه) [پ (ب ، خ) ع : بط ، اس ، مؤ ، وا ، ج: پتخې] بتخه ، بطخه ، بطه ، بتکه.

**پُتر** :- (پُ + تَ + رْ) [س ، اس ، مذ ، وا] زوے ، بچے ، هلک

**پتراک** :- (پَ + تْ + را + کْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج: پتراکونه] د لمنې اړولے مخ.

**پترک** :- (پَ + تْ + رَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، (مؤ ، وا: پترکه ، ج : پترکې) ] هغه ګډ چې غوږونه ئې نۀ لوے وي او نۀ واړۀ.

**پتر کاڼے** :- (پَ + تَ + رْ + کا+ ڼے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ج : پترکاڼي] بجري ، د چرو په شان واړۀ واړۀ کاڼي.

**پترکے** :- (پَ +تْ + رَ + کَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پترکي] (۱) د زخم خيږ ، د زخم د اوچېدو په وخت نرے غوندې پترے (۲) د اوسپنې وړوکے شان پترے ، د لرګي نرے شان توټنے.

**ـــــ اچول** :- (اص) خيږ غورځول ، د زخم نه خيږ يا پترے غورځېدل.

**ـــــ نيول** :- (اص) خيږ نيول، پړچ نيول ، پترے نيول.

**پتروټے** :- (پَ + تْ + رو + ټَے) [پ (کن اس ، مذ ، وا ، ج : پتروټي] وړوکے پاترے يا ښانک ، خاورينه رکيبۍ ، خاورين پلېټ.

**پتروکے** :- (پَ + تْ + رو + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] يو شين بوټے ، چې ګل ئې سور وي او اُوم خوړے شي.

**پترول** :- (پِ + تْ + رو + لْ) [پ (روسي قاموس) انګ: پټرول ، اس مذ] پټرول ، د لارۍ موټرو تېل.

**پترونجے** :- (پَ + تْ + رُوْ + نْ + جَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] اونت ، کتکتے ، لرے، د لرې خانه خانه يا کورکي کورکي حصه

**پتره** :- (پَ + تْ + رَهْ) [پ (صوابي) اس] د کاتک منګر په مياشتو کښې زميدار شنې پاڼې وُرې جارې اورېبي او څپولي ترې جوړ کړي ځينې شنې اوريبي او ځينې اوچې کړي هله ئې څنډي. کومې پاڼې چې اودورېږي هغې ته پتره وائي او بيا ئې بوسو سره ګډه وي او مال ته ئې اچوي. اوښان او بيزې ئې ډېر په شوق خوري.

**پترۍ** :- (پَ + تْ + رَۍ) [پ ، اس ، مؤ] پترے ، د ګنو اوچې پاڼې چې څاروي ئې خوري. او د خشاک په کار هم راځي.

**پترے** :- (پَ + تْ + رَے) [پ ، اس مذ ، وا ، ج : پتري] (۱) د اوسپنې تاپړے يا تامړے (۲) دمهيانو يا کبانو يو قسم (اف قاموس) (۳) د ډال يا کنګل مېخ (۴) د ګنو وغېره پترۍ (۵) پرېکون (اف قاموس) (۶) دحجامت د مشين بلېډ (۷) د باران يا سېلاب نه پس د زمکې چاؤدلو سره چې وړې وړې ټکړې جوړې شي هغې ته پترے وائي. (۸) د سرو يا د سپينو غونډه ټيکۍ چې امبېل کښې اچولے شي. يا د قميص ګرېوان وغېره کښې ټک وهلے شي.

**ـــــ پترے تلل** :- (اص) د څۀ څيز وړې وړې او تامړې تامړې کېدل ، ټکړې ټکړې يا ذرې ذرې کېدل ، ټوټې کېدل.

**ـــــ ټک وهل** :- (اص) (۱) پترے لګول ، مات څيز د پتري په ذريعه پيوندول (۲) د مضبوطوالي دپاره په صندوق وغيره پتري وهل . (۳) خبره پخول.

**ـــــ کول** :- (اص) د چيني يا د سُوچه مات لوښي د پتري په ذريعه پيوندَول.

**ـــــ کېدل** :- (اص) د باران يا د سېلاب نه پس د زمکې مخ د چاؤدلو نه پس ورې ورې ټکرې جوړېدل.

**ـــــ لګول** :- (اص) و ـــــ پترے ټک وهل.

**پورې پترے لګول** :- (اص) خپل ځان په تکليف سره چا سرې يا ټولي سره يو ځاے کول ، ځان په تکليف چاسره ملګرے کول.

**پتــري والا** :- (پَ + تْ + رِيْ + وا + لا) [ پ ، اس ، ص ] (۱) يــو قســم جرمني ټوپک (۲) پتري خرڅوُونکے (اف : قاموس).

**پتړ** :- (پَ + تَ + ړْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : پتړُونه ] (۱) د درياب د بهېدو لار (۲) ګودر ، په درياب د پورې وتو لار ، پتن.

**پتک** :- (پَ +تَ +کْ) [پ،اس، مذ، و،ج : پتکونه، پتکي] (۱) د اوبو هغه لوښے چې غاړې ته اچولے شي .چې په سفر کښې يا د کلي نه بهر تلو کښې پکاريږي .بتک (۲) هغه کاغذ چې تار ترې تاوولے شي . (۳) کوسه .هغه څوک چې په مخ ئې وېښتهٔ نهٔ راټوکيږي . کوسه مخے .

**پتکه** :- (پْ + تْ + کَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پتکې ] نرے او مانده وجود بنيادم ، نرے نروچکے ، د بدنه سپک بنيادم.

**پتکے** :- (پَ + تْ + کَے) [پ ،اسم،تصغير،وا ح : پتکي] وړوکے شان پتک

**پتکے** :- (پَ + تْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] د ځناور د بدن وېښتهٔ ، چې پشم ئې اوږد نهٔ وي.

**پتکے** :- (پْ + تْ + کَے) [ پ، اس ، مذ ، ج : پتکي (مؤ : پتکه ، ج : پتکې ) ] (۱) يوه وړه شان مرغۍ ، (۲) نرے او مانده بنيادم ،

**پتلون** :- (پَ + تْ + لُو + نْ) [ اُر ، اس ، مذ ، وا ، ج : پتلونونه ، پتلونونه ، پتلونينه ] پينټ ، انګريزي پرتوګ ، چې تنګ شان وي پتلين.

**پتلــه** :- (پَ + تْ + لَــه) [ اف : پ (قــاموس) اس ، مــؤ ] بلــورے ، چــې ماشومان ورسره لوبې کوي.د شيشې ګيني ، هنډ .

**ـــــ کول** :- (اص) بلوري کول ، ګيني کول ، هنډان کول.

**پتلېز** :- (پ + تْ + لې + زْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پيوند ، پتلېس، جوړ

**پتلېــزول** :- (پَ + تْ + لــې + زَ + وْ +لْ) [ اف : پ (قــاموس) مــص مــت] پتلېسول ، پتلېس کول ، پيوندول ، جوړ لګول.

**پتلېزېــدل** :- (پ + تْ + لې + زې + دْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص ، لا ] پتلېسېدل ، پتلېس کېدل ، پيوند کېدل ، جوړ لګېدل.

**پتلېس**:-(پَ + تْ + لې + سْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـ پتلېز.

**ـــــ کول** :- (اف) اص .و ـــــ پتلېزول.

**ـــــ کېدل** :- (اف) اص .و پتلېزېدل.

**پتلېســول** :- (پَ + تْ + لــې + سَ + وَلْ) [ اف : پ (قــاموس) مــص ] و ـــــ پتلېزول.

**پتلېسونګ** :- (پَ + تْ + لې + سَ + وْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــــ پتلېسونه.

**پتلېســونه** :- (پَ + تْ + لــې + سَ + وْ + نَــه) [ اف : پ (قــاموس) حمــص] پيوند لګونه ، جوړ لګونه .ټانکه لګونه .

**پتلېسوُونکے** :- (پَ + تْ + لې + سَ + وُوْ + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پتلېسوُونکي ] پيوندُونکے پيوند کوونکے ، ټانکه لګوونکے.

**پتلېسېدل** :- (پَ + تْا + لې + سې + دَ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص ، لا] پيوندېدل ، پيوند کېدل ، ټانکه کېدل.

**پتلېســېدنګ** :- (پَ + تَ + لــې + ســې + دَ + نْ + ګ) [ اف : پ (قــاموس) حمص] و ـــــ پتلېسېدنه.

**پتلېسېدنه** :- (پَ + تْ + لې + سې + دْ + نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص] پتلېسېدهٔ، پيوندېدنه ، پيوند کېدنه ، ټانکه کېدنه.

**پتلېسېدُونکے** :- (پَ + تْ + لې + سې + دُوغ + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) مــف، مــذ ، وا ، ج : پتلېســېدونکي (مــؤ ، وا: پتلېســېدونکے ) ] پيوندېدونکے ، ټانکه کېدونکے .

**پتلېسېدهٔ** :- (پَ + تْ + لې + سې +دهٔ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پتلېسېدنه.

**پــت ليــک** :- (پَ + تْ + لــيْ + کْ) [ اف : پ (قــاموس) اس ، مــذ ، وا: ج: پتليکونه ] اعزازي لَيک ، اعزازي فرمان ، اعزازي چټهي يا سند ، دستاوېز .

**پتلــين** :- (پَ + تْ + لِــيْ + نْ) [ پ (بنــو) اس ، مــذ ، وا ، ج : پتېلنينــه ]و ـــــ پتلون

**پتنســے** :- (پَ + تْ + نَ + سَــے) [ اف : پ (قــاموس) اس ، مــذ ، وا ، ج: پتنسي ] پتنوس ، مجمه ،تر بل

**پتنــګ** :- (پَ +تَ+ نْ + ګْ) [ پ ، اس ، مــذ ، وا ، ج : پتنګــان ] (۱) يــو وړوکے الوتونکے چنيجے ، چې د شپې د ډيوې يا شمعې وغيره رڼا ته ځان رارسوي او اکثر پرې اوسوځي (۲) رښتونے عاشق ،سخت مئين ، ستي (۳) باډيوه ، ګوډۍ ، بادي اوا .

نهٔ پتنګ د خپل چراغ وي
نــهٔ بلبل د خپــل ګلزار رحمٰن بابا

ټپه: خاوري دې په سر شوې
شمعې ته جوړ شو په شيشو کښې مکانونه

**پتنوس** :- (پ+ تْ + نُوْ + سْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پتنوسونه ] و ـــــ پتنسے

**پــت نــوم** :- (پَ + تْ + نُــوْ + م) [ پ (روسي قــاموس) اس ، وا ، ج : پت نومونه ] لقب ، د درناوي او عزت نوم.

**پتنه** :- (پَ + تْ + نَه يا پ + تْ + نَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پتنې] (۱) فتنه ، دښمني ، غليمي ، عداوت ، مخالفت (۲) شور ، فساد .

**ـــــ اچول** :- (اص) دښمني يا مخالفت پيدا کول ، غليمي جوړول.

**ـــــ جوړول** :- (اص) فساد جوړول ، جنګ تودول، ورانے کول.

**ـــــ راولاړېدل** :- (اص) فساد پيدا کېدل.

**ـــــ کول** :- (اص) دښمني کول ، غليمي کول ، چاسره مخالفت کول.

**د اوښ پتنه** :- (اص) (۱) د اوښ کينه (۲) د اوښ پــه شــان دښــمني يعنــي هغه دښمني ، مخالفت او بغض چې په عمرونو نهٔ هېرېږي سخته دښمني .

**پتنې کول**:-(اص) شرارت کول ، جنګ جګړې ته لمسول ، ګوته ورکول.

**پتنه دار** :- (پَ + تْ + نه + دا + رْ) [ پ ، اس فا ع ، مذ ، وا، (مؤ، وا پتنه داره ، ج : پتنه دارې ] دښمن دار ، هغه څوک چې دښمني لري.

**پتنه داري** :- (پ + تْ + نه + دا + رِيْ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پتنه دارئ ] دښمن داري ، دښمني.

**پتنــه ګــر** :- (پتنــه + ګَ + رْ +) [ پ (ب، خ) اس ،ص ، مــذ ، وا ، ج : پتنــه ګــرون (مــؤ، وا: پتنــه ګــره ، ج : پتنــه ګــرې ) ] فســادي ، شــېطان ،

ورانکارے ، شېطانت کوُونکے ، لمسوُونکے۔

**پتڼ** :- (پَ + تَ + ڼْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پتڼان ، پتڼوُونه ] (۱) د دریاب غاړه ، د دریاب د تېرېدو لار ، ګودر ، د دریاب پلنوالے (۲) د ځنګل یا د غر لار (ظفر) عام لار (۳) پتنګ۔

پتڼ چې مینه په دې سراغ کا
اخـر سینه به وربانې داغ کا     پیر محمد کاکړ

**پتور** :- (پَ + تُو + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پتورونه ] سینه بند ، تانګ۔

**پتوری** :- (پَ + تو + رَی) [ پ ، اس ، مؤ ] توکری۔

**پتون** :- (پَ + تُو + نْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پتونونه ، پتونان ، پتنینه ] د زنګون نه بره غوښن ځاے ، ورون۔

ـــــ **تپول** :- (اص) پتون وهل ، چاته د پرزولو د مقابلې دعوت ورکول ، د کشتۍ یا د کبډۍ بلنه ورکول ، د مقابلې چېلنج یا بلنه ورکول۔

ـــــ **وهل** :- (اص) و ـــــ پتون تپول۔

**پتونی** :- (پَ + تُو + نَی) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پتوني ] یو خوشبویه ګل۔

**پتونے** :- (پَ + تُو + نَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پتُوني ] اخري سرے ، وروستے سړے ، هغه سړے چې وروستو پاتې شي ۔ ډانډوغ ، پتي۔

**پته** :- (پَ + تَه) [ ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پتې ] (۱) نخښه نښانه ، درک ، سراغ ، (۲) د چیټۍ دپاسه د وصول کوُونکي نوم ، ځاے ، ډاکخانه ، تحصیل ، ضلع وغېره لیکل (۳) پاڼه ، پتره (۴) د تاش پاڼه۔

اچــو خپـلــو پته راوړه پـه زړهٔ مې شه ده
جنګ ئې کړے سلطان خپلو په دېو سه ده     د مروتو کسرونه

ـــــ **اچول** :- (اص) د تاش په لوبه کښې په خپل وار پاڼه ګُذارول۔

ـــــ **اړول** :- (اص) پاڼه اړول ، د تاش په لوبه کښې د پاڼې اړولو سره چېلنج کول۔

ـــــ **ایستل** :- (اص) سُراغ لګول ، درک لګول ، پته لګول ، نخښه نښانه معلومول ، ځاے ځائیګے معلومول۔

ـــــ **زیږېدل** :- (اص) و ـــــ پاڼه زیږېدل۔

ـــــ **ښائل** :- (ا) (۱) پته ښودل ، پته لګول ، سزا ورکول ، ښهٔ تنګول ، د چا ځاے ځائیګے ښوول۔

ـــــ **ښوول** :- (اص) و ـــــ پته ښایل

ـــــ **لګول** :- (اص) (۱) و ـــــ پته ایستل (۲) و ـــــ ښائل

ـــــ **لیکل** :- (اص) سرنامه لیکل ، خط دپاسه د چا پوره نوم ، ځاے ، ډاکخانه وغېره لیکل۔

ـــــ **موندل** :- (اص) (۱) درک موندل ، سراغ موندل ، (۲) د ورک څیز یا سړي پته لګول (۳) د تاش په پاڼو کښې زوره وره پته لاس ته راتلل۔

ـــــ **ورکېدل** :- (اص) نهٔ موندلے کېدل ۔ نایابه کېدل ، بالکل ورکېدل ، بې درکه کېدل ، د څهٔ څیز یا بنیادم ورکېدل یا غائبېدل ، نوم نشان ورکېدل ، عدم پته کېدل ، پته لګېته نهٔ لګېدل ، سر پته ورکېدل ، سر پته نهٔ لګېدل ، اته پته نهٔ لګېدل۔

ـــــ **لګېته نهٔ لګېدل** :- (اص) و ـــــ پته ورکېدل۔

**سر پته نهٔ لګېدل** :- (اص) و ـــــ پته ورکېدل۔

**سر پته ورکېدل** :- (اص) و ـــــ پته ورکېدل۔

**پته** :- (پَ + تَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] هغه لَهه چې د سېلاب نه روستو پاتې شي ۔ ربړېنه خاوره ، مټ

**پته** :- (پَ + تَه) [ پ (عا) ع : فتح ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پتې ] فتح ، ګټه ، برے ، ورِ نیا

ـــــ **راوړل** :- (اص) د جنګرېز نه په کامیابۍ راتلل ، بریا لے راګرځېدل ، په جنګ کښې ګټه موندل۔

**پته لیک** :- (پته + لِيْ + کْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] سرنامه ، په چیټۍ وغېره باندې د وصولوونکي نوم او د هغه کلي ډاکخانه وغېره لیکل۔

**پتی** :- (پَ + تَ + ی) [ پ (ګن) اس ، مؤ ] دمال تقسیم ، بخره ، حصه ،

ـــــ **کول** :- (اص) مال ویشل ، د مال تقسیم کول ، برخې جوړول ، حصې جوړول۔

**پتي** :- (پَ + تِيْ) [ پ ، اص ] (۱) پت لرُونکے ، اعتباري ، معامله کښې کره ، په لېن دېن کښې سُوچه ، متل : لکي ښهٔ دے که پتي ۔ (۲) پوخ شوے دال ، پېتي ، پیاتي ۔

**پتي** :- (پَ + تِيْ) [ ه ۔ لاحقه ] دا لاحقه د څښتن ، مالک په معنٰی د لکو یا کروړو شمېر سره راځي ۔ لکه : لک پتي ، کروړ پتي۔

**پتي** :- (پَ + تِيْ) [ پ ، اس ، مذ ] و ـــــ پتونے۔

**پتې** :- (پَ + تَې) پ ، اس ، مؤ ، ج ] پاڼې ، پخې۔

ـــــ **اچول** :- (اص) (۱) پاڼې غورزول ، پتې ګذارول (۲) تګي برګې کول ، دوکه کول ، په چل ول د چا نه مال بودول ، پتې ایشتل

ـــــ **ایشتل** :- (سو) اص ۔ و ـــــ پتې اچول۔

ـــــ **جنګول** :- (اص) ساز باز کول ، د چا خلاف سازش یا صلاح کول۔

ـــــ **کول** :- (اص) د تاش لوبه کول۔

**پتے** :- (پَ + تَے) [ پ ، (عا) ع : فتح ، اس ، معر ، مذ ، وا ] (۱) د فتح خان وران نوم (۲) د یوې قبیلې نوم۔

شاباش شاباش دې پتې زویه شیران
تـــه ئې اچـــو خپل پـــه زېو ګران     د مروتو کسرونه

**پتیا** :- (پ + ت + یا) [ پ ، اس معر ] صوابۍ تحصیل کښې مېنۍ نومې کلي سره نزدې یو کلي نوم۔

**پتیالے** :- (پَ + تْ + یا + لَے) [ پ، اس ، مذ ، وا ، ج : پتیالي ] (۱) د پت خاوند پت لرونکے ، د اعتبار وړ ، په خبره ټېنګ (۲) عزت دار ، عزتمند (۳) هغه څوک چې د دوستۍ او خپلولۍ لوازمات او حقوق په کلکه پوره کوي۔

**پتې باز** :- (پَ + تَې + با + زْ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پتې بازان ، ( مؤ ، وا : پتې بازه ، ج : پتې بازې ) ] (۱) چالاک ، اُستاذ او غټ تګ (۲) تاش کوُونکے ، جوارګر ، شرطي۔

**پتې بازي** :- (پتې + با + زِيْ) [ پ، اس ، مؤ ] تګي ، برګي ، تګي تورې ، چل ول

**پتیر** :- (پَ + تِيْ + رْ) [ پ ، ع : فطیر ۔ اس ، مذ ] د خمیر ضد ، چې خمبیره نهٔ وي۔

**پتیره** :- (پَ + تِيْ + رَه) [ پ ، اس ، مؤ ] هغه اغړلې اوړهٔ یا خټه وغېره چې د اغړلو نه پس پرې ساعت نهٔ وي تېر شوے ۔ د خمبیره ضد ۔ لکه : پتیره ډوډۍ ، پتیره اوړهٔ ، پتیره خټه۔

**پتیله** :- (پَ + تِيْ + لَه) [ ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پتیلې ، پتیلي ] د ارتې یا لوېې یا خَلاصې خولې دیګچې ، دیچکے۔

**پتیلګی** :- (پَ + تِيْ + لْ + ګی) پ ، اس ، تصغیر مذ ، وا ] ورکوټې پتیله۔

**پتین** :- (پَ + تِيْ + نْ) [ پ ، (ښو) اس ، مذ ، وا ، ج : پتینینه ] و ـ پتون۔

**پتېبل** :- (پ + تې + يَ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] پخه اراده کول۔

**پتېبلے** :- (پَ + تې + يْ + لَے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ] کلک کړے

شوے ، پوخ کړے شوے.

**پټپینه** :- (پَ + ټې + يْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] کلکونه ، پخونه.

**پټپیونکے**:-(پَ + ټې + يُو + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع مذ ، وا ، ج : پټپیونکي (مؤ ، وا: پټپیُونکے] کلکوُونکے ، پخه وونکے.

**پټ** :- (پْ + ټ) [پ ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا: پټه ، ج : پټې) ] (۱) پناه په نظر نهٔ راتلونکے ، چې نهٔ ښکاري (۲) په جامه پټ ، چې جامه ئې اغوستې وي (۳) په څؤ ، په تاک.متل: پټ غل بادشاه دے.

چې اسمان ئې مخ پټ کړے په سحاب دے

خدا ے د ما و تـه څرګند کړه هغـه نمر بیـا

—— **پټ** :- (اص) د نظر نه پناه ، په پټه ، په غلا ، بل ته د ښکاره کېدو نه بغېر.

—— **پټ ژړل** :- (اص (۱) په پټه ژړېدل ، د خلکو نه په ډډه ځان ته ژړېدل (۲) د معشوقې په مینه کښې اوښکې بیول.

—— **پټ کتل** :- (اص) غلي غلي کتل ، داسې کتل چې نور څوک پرې خبر نهٔ شي.پټ پټ لیدل.

—— **پټ کېدل** :- (اص) غلے غلے کېدل ، مېدان ته نهٔ راوتل.

—— **پټ لیدل** :- (اص) و —— پټ پټ کتل.

—— **پناه** :- (اص) پټ په پټه ، په پرده کښې.پسې شا ، پشي شا.

—— **په پټه** :- (اص) (۱) په غلا ، پټه راپټه ، بغېر د څرګندولو او بغېر د ښکاره کولو (۲) بغېر د خبر او اطلاع ، چپ په چپه ، په چپه خولهٔ ، په ټکې برګې.

—— **څرګند** :- (اص) (۱) ظاهراو پناه ، پټ ښکاره (۲) پرده ، راز.

—— **دا پټ**:- (اص ) (۱) پناه ، پټ شوے (۲) پټې خبرې ، د راز خبرې.

—— **شبقدر** :- (اص) (۱) د شوقدر شپه.(۲) پټه خبره ، پټ راز.

—— **شوے** :- (اص) (۱) د نظر نـه پناه شـوے ، پـه ډډه شـوے ، غېب شوے ، (۲) په غلا وړے یا بوتلے (۳) په څؤ کښې ناست ، په تاک کښې ناست.

—— **ښکاره** :- (اص) و —— پټ څرګند.

—— **کښېناستل** :- (اص) (۱) په څؤ کښې کښېناستل ، چې د نورو نه پناه وي.

—— **لړمون** :- (اص) زړهٔ ، سرې او اینې تـه لړمـون وائـي.دا څیزونـه پـه ګوګل کښې پټ وي.ځکه ورته پټ لړمون هم وائي.

—— **مجلس** :- (اص) چا سره پټې خبرې یااصلاح مشوره ، د راز خبرې.

**د ځان سره پـټ ساتل** :- (اص) څهٔ راز نهٔ څرګندول ، څهٔ خبره ځان سره محفوظه ساتل یعنې چا تـه نهٔ ښـئیل او نهٔ وئـیل ، چا تـه نهٔ ښکاره کول ، راز کښې ساتل.

**پټه دې نهٔ وي** :- (مح) دا خبره دې څرګنده وي.تهٔ دې خبر وي.تاتـه دې پته وي تا نه به ئې څهٔ پټوم.

**پـټ** :- (پَ + ټْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پټُونـه ] (۱) پلـه ، (۲) د انـدر پـايې دسـتکے ، یـا ټکے یـا وګـے (۳) سرسـام (۴) د ګوګوشتکې یا د بلې مرغۍ د غاړې پټه (۵) د جامې تهه (۲) ډاګه ، مېره ، دشت ، بیابان ، بېدیا ، (۷) د اوښ د سینې ډډې یا اړخ.

—— **ماتېدل** :- (اف) اص.صحت خرابېدل ، ناجوړه کېدل.

**پټ** :- (پَ + ټْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] ډډه ، اړخ ، څنګ.

—— **پر پټ** :- (اف) اص.څنګ په څنګ ، اړخ په اړخ ، لور په لور.ډډه په ډډه.

—— **پر پټ اوښتل** :- (اف) اص.ډډه په ډډه اوښتل ، اړخ په اړخ کېدل ، په یو اړخ په بل اړخ کېدل ، څنګ په څنګ اوښتل.

**پـټ** :- (پَ + ټْ) [پ ، لاحقـه ] دا لفـظ د غـټ سـره د لاحقې پـه طـور استعمالېږي.لکه : '' غټ پټ سړے ''.

**پـټ** :- (پَ + ټْ) [پ ، اس ، مـذ ،وا ، ج: پټُونـه ] (۱) د اونـو بوټـو بـرنے پوسـتکے ، چـې دارو ، رنـګ وغېـره لـه پکـارېږي (۲) د اونـود تنـې پوستکے چې تارونه وغېره ترې جوړېږي (۳) د څرمنو رنګ چې د ځینـو اونـو پوسـتکو نـه تیـارېږي (۴) د څـاروي د څرمنې لاندې او د غوښې دپاسه غټه پرده (۵) د مار پوستکے یا تخه.

—— **اړول** :- (اص) (۱) د اونې زوړ پوستکے غـورزول او نـوے پوسـتکے کول (۲) د بنیادم رنګ اړول ، ښائسته کول (۳) د څاروي د غوښو دپاسه پرده لرې کول (۴) وهل ټکول ، په وهلو شین سر کوزے کول.

—— **غورځول** :- (ګن) اص.د مار پوستکے یا تخه غورځول.

—— **نیول** :- (اص) (۱) د زخم یا ننکۍ او دانې دپاسه پرچ جوړېدل (۲) د څاروي څرېېدل.

**پټ** :-(پَ + ټْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پټان (مؤ : وا ، پټه ، ج :پټې] هغه چرګ ، تنزرے ، زرک یا بل مرغے چې د ځوانۍ اواز کولو تـه تیارېدونکے وي.پټړ.

**پټاپټ** :- (پَ + ټا+ پَ + ټْ) [پ ، اس ، مذ] (۱) پټ پټونے ، د ماشومانو یوه لوبه ، چې یو له پکښې سترګې اوټړې او نور ترې نه پټ شي او بیا ئې د ے لټوي (۲) فتافت ، ډېر زر ، په بیړه ، په جلتۍ سره.

**پټاته** :- (پَ + ټا + تَه) [اف : پ (قاموس) انګ ، پوټېټو ، اس ، مؤ وا ، ج : پټاټې ] کچالو ، الو.

**پټاخ** :- (پَ + ټا + خْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] مچوغنې یا مرچغنې کښې د کـاني کښېښـودو پلـن ځـا ے ، پټـه ، د مچـوغنې خولـهٔ ، د مخچونې یا مچوغنې ګوتمه.

**پټاخه** :- (پَ + ټا + خَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پټاخې ] (۱) د اتش بـازۍ یوه ګوله چې د دارو نه ډکه وي او په زمکه راخلاصولو سره ډز کوي. (۲) پخوانو (پټاخدارو) ټوپکو کښې بـه پـه دارو اور لګولـو دپـاره یـو وړوکے غونډې د مسالې نه ډک څیز کښېښـودے شهٔ چې د کوترې په ګذار به ئې اور واغست.دغه شان څیز نن پرون هم د ماشومانو په ټوپکو تماچو کښې کښېښـودے شي.(۳) ښکلې ، چالاکه ، پېغله (۴) د کارتوس شاته هغه غونډ شان څیز چې د ټوپک د ستنې په ټـک بـارودو تـه د اور شـغله رسـوي (۵) ب ، خ : طماچـه ، توپچـه ، پستول (۲) ب ، خ : غېرت ، ننګ.

—— **خلاصول** :- (اص) په پټاخه ډز کول.

—— **خوړل** :- (ب ، خ) اص ، ننګ کول ، غېرت کول ، غصه کول.

**پټاخې دار** :- (پ+ ټا + خې+ دا+ رْ) [پ ، اس ، ص، مذ ، (مؤ ، وا: پټاخې داره ، ج : پټاخې دارې) ] پټخ رور ، پټاخـه لـرونکے ، پـه پټاخـه کـار کوُونکے یا چلېدونکے.لکه : پټاخې دار ټوپک ، پټاخې داره تماچه.

**پټـار** :- (پَ + ټـا+ رْ) [اف : پ (قـاموس) اس، مـذ ،(مـؤ ، وا: پټـاره ، ج: پټارې) ] پټې دار یا برګ څاروے ، ډبا.

**پټار** :- (پَ + ټا + رْ) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : پټارُونه] پچې ، هغـه غونـډه پټـورۍ سـر پوښـه ټـوکرۍ یـا شـکرۍ چـې پکښـې جـامې وغېـره کښېښودے شي او یا پکښې ماران ساتلے شي.

**پټار** :- (پْ + ټا + رْ) [پ (ګن) اس ، مذ ، وا ، ج : پټارونه] د پالنګ نـوار ، پټاره.

**پټاره** :- (پْ + ټا + رَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: پټـارې] (۱) د پلنګ نوار ، پټار ، پټۍ (۲) د ګوګوشتکې د مرۍ پټه یا کربنـه (۳) د

څرمنې نه جوړه شوې تسمه یا پټه (۴) ګن ـ هغه پرتوغانې ، بګه یا لال چې د پټې په شان جوړ وي ـ

**پټارۍ** :- (پ + ټا + رَی) [ پ ، اس ، مؤ] وړوکے پټار، پچی ، پټوری

**پټاس** :- (پ + ټا + سْ) [ پ ، انګ ، پُټاش ، اس ، مذ] بارود ، یو قسم اور اخستُونکې ماده چې عموماً د ټوپک په دارو اور لګولو دپاره استعمالیږي

**پټاسه** :- (پ + ټا + سَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: پټاسې] د ګنو پوک

**پټاکی**:- (پ + ټا + کَ + یْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د کارتوس پټاخه

**پټاکي**:- (پ + ټا + کيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] ټوقې ټقالې، وشتې ـ

**پټاڼ** :- (پ + ټا + ڼ) [ پنجابي ، اُر : پټهان ، اس ، مذ ،وا ، ج: پټاڼان (مؤ ، وا: پټاڼه ، ج : پټاڼې ] پښتون ـ

راشه تهٔ نا ترسې لُور د ترک که د پټاڼ ئې     خوشحال

**پټ پټاڼه** :- (پټ + پ + ټا + ڼه) [ پ (ب، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : پټ پټاڼې ] پټ پټاڼے ، پټ پټونے ، پټوُونے ـ

**پټ پټاڼے** :- (پټ + پ + ټا + ڼے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پټ پټاڼي] پټ پټاڼه ، پټ پټونے ، الاداد ، د ماشومانو یوه لوبه ، چې یو کس له پکښې سترګې پټې کړي ، او نور ملګري ترې نه چرته پټ شي ـ بیا هغه سترګې پرانېزي او دوي لټوي او چې څوک پکښې اونیسي نو بیا هغه له سترګې وتړي ـ

**ـــ کول** :- (اص ) (۱) د پټ پټوني لوبه کول ، پټ پټاڼه کول ، (۲) څوک چې د بل نه ځان پټوي راپټوي نو هغه ورته طنزاً وائي چې "څهٔ پټ پټاڼے دې راخستے دے " ـ

**پټ پټونے** :- (پټ + پ + ټو + نے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پټ پټوني] و ــــ پټ پټاڼے ـ

**پټ پنهم** :- (پټ + پَ + نْ + هَ + مْ ) [ پ ، ص ] پټ ، په نظر نهٔ راتلونکے ، د نظر نه پناه ، چې څوک ئې نهٔ ویني ـ پوشیده ـ

**پټ پوهاند** :- (پټ + پو + ها + نْ + دْ) [ اف : پ (قاموس) ص] د غیبو علم لرُونکے توربتې ، تروېتے ، نجومي ـ

**پټتیا** :- (پ + ټْ + ت + یا) [ پ ، اس، مؤ] پټوالے ، پناه والے ـ

**پټخ** :- (پ + ټ + خَ ) [ اف : پ (قاموس) اس ،مذ (مؤ : پټخه ، ج: پټخې ] سخت ، کلک ، پټوخ ـ

**پټ ختلے** :- (پټ + خَ + تْ + لَے ) [ پ (سو) اس، مذ] برګے ، د برص مرض وهلے ، برګې وهلے ـ

**پټخوالے** :- (پ + ټْ + خْ + وا+ لَے ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ] کلکوالے ، سختول ـ

**پټخَول** :- (پَ + ټُ + خَ + وْ + لْ ) [ افغ : پ (قاموس) مص مت ] کلکول ، سختول

**پټ خولے** :- (پ + ټْ + خو + لَے ) [ پ ، اس ، ص] غلے ، چپ ، خاموش ، چپ خولے ، کم ګو ، چې ډېرې خبرې نهٔ کوي ، چپ پاتې کېدونکے ـ

**پټخونه** :- (پ + ټ+ خَ + وْ + نَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] کلکونه ، سختونه ـ

**پټخوُونکے** :- (پ + ټ+ خَ + وُوْ + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) ـ اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پټخوونکي (مؤ : پټخونکې )] سختوُونکے ، کلکوُونکے ـ

**پټخه** :- (پَ + ټْ + خَه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا] خرګې ، بشکالې ګونګټه ، بخملې

**پټخې** :- (پَ + ټْ + خَې ) [ پ (ب،خ) اس، مذ ،وا ، ج: پټخې] پوستکے پوټ ، څکل ـ

**د مغ پټخې**:-(ب،خ) اص (۱) د مخ څرمن ، د مخ پوست (۲) حیا ، شرم

**پټخېدل** :- (پْ + ټْ + خې + دْ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص لا ] (۱) سختېدل ، کلکېدل (۲) باسي کېدل ، سخاکېدل (ظفر)

**پټخېدنګ** :- (پْ + ټْ + خې + دْ + نْ + ګْ ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ پټخېدنه ـ

**پټخېدنه**:-(پْ + ټْ + خې + دْ + نَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص] (۱) پټخېدهٔ، سختېدنه ،کلکېدنه (۲) باسي کېدنه ،سخاکېدنه (ظفر)

**پټخېدونکے** :- (پْ +ټْ +خې+ دُوْ + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پټخېدونکي ] (۱) سختېدونکے ، کلکېدونکے ، (۲) باسي کېدونکے ، سخا کېدونکے (ظفر)

**پټخېده** :-(پْ + ټْ + خې + دَهٔ ) [ اف: پ (قاموس ) حمص ] و ـ پټخېدنه

**پټرخونه** :- (پْ + ټَ + رْ+ خو + نه ) [ پ (ب، خ) اس، مذ ، وا ، ج : پټرخونې] پټوارخانه ، د پټواري یا مرزا دفتر ـ

**پټرول** :- (پ + ټْ + رو + لْ ) [ انګ ، اس ، مذ ] (۱) هغه تېل چې موټرې لارۍ پرې چلېږي ـ (۲) ګشت ، هغه کسان چې په یوه علاقه کښې د څارنې په ډول ګرځي راګرځي ـ

**ــــ اچول** :- (اص) (۱) د لارۍ ، موټر ټانچۍ ته پټرول اچول (۲) څهٔ کار ته بډې راکښل ، تیارېدل (۳) څوک سُوختول ـ

**ــــ بندول** :- (اص) په انجن کښې پټرول د څهٔ فني خرابۍ په وجه نهٔ راتلل ـ پټرول بند بدل ـ

**ــــ بندېدل** :- (اص) و ــــ پټرول بندول ـ

**ــــ ختمېدل** :- (اص) (۱) د ګاډي په ټانچۍ کښې د پټرول د نشتوالي په وجه د ګاډي ودرېدل (۲) طاقت کمېدل ، کمزورے کېدل ، د کار کولو توان ختمېدل

**ــــ خوړل** :- (اص) د انجن د ګېلن په سر د میلونو په حساب د پټرولو اندازه

**ــــ کتل** :- (اص ) (۱) په څهٔ ځاے کښې پټرول لټول (۲) د لارۍ یا موټر په ټانچۍ کښې پټرول کتل ـ

**ــــ کول** :- (اص) ګشت کول ، په یوه علاقه کښې د څارنې په کار ویښ بېدار ګرځېدل

**د پټرولو پمپ**:- (اص ) هغه ځاے چې پټرول وغېره پکښې خرڅېږي ـ

**د پټرولو ټانک**:- (اص ) (روسي قاموس ) د پټرولو ټانکۍ یا ټانچۍ ـ

**د پټرولو ټانکۍ** :- (اص ) و ــــ د پټرولو ټانک ـ

**پټرول پمپ**:-(پټرول + پَ + مْ + پْ ) [ انګ ، اس ، مر ، مذ ، وا ج: پټرول پمپونه ] د پټرولو پمپ ، لارۍ ، موټرو ته د پټرولو اچولو ځاے ـ

**پټرولي** :- (پ + ټْ + رو + لِيْ ) [ پ ، تر ، ص ] (۱) چې پټرولو سره چلېږي (۲) د پټرولو وړلو خاص ګاډے ـ

**پټړ** :- (پَ + ټَ + ړْ ) [ پ (ګن) اس ، ص ، مذ] هغه چرګ چې بانګ ویلو ته تیار وي ـ پټ ـ

**پټړی** :- (پَ + ټْ + ړَ + ی ) [ اُر : پټړي ، اس ، مؤ] (۱) د اور ګاډي ـ سړک ، د رېل پاټلۍ یا پټلۍ (۲) د نهر وغېره غاړې ته نرۍ د پیاده لار ـ

**پټ سترګې** :- (پټ + سْ + تَ + رْ + ګې ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: پټ سترګي ] (۱) چې سترګې ئې پټې وي ـ (۲) بې پروا ، هغه څوک چې د غم درد نه نهٔ وي خبر (۳) بې لحاظه ، شوخ،بې شرم ـ

**پټ سُوري** :- (پټ + سُوْ + رِيْ ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، ج] د درمند پاتې شوے خشاک ـ

**پټ غشوي** :- (پټ + غُ + شُو + يْ) [ اف : پ (قاموس) اس] د ماشومانو يوه مشهوره لوبه ، چې په ناسته کولے شي.

**پټ غل** :- (پَ + ټْ + غَ + لْ) [ پ ، اس ، مر ، مذ] ناليدلے غل ، هغه څوک چې څۀ کار اوکړي او دنيا ته څرګند نۀ وي.

متل: "پټ غل بادشاه دے"

**پټک** :- (پْ + ټَ + کْ) [ پ ، اس ، مذ] (۱) پنډوس ، غونډسکے ، فټ بال (۲) د پيسو ټکو کښېښودو کاسه.

د بــــري بټـــک ئې يووړه له ميدانه
چې په لاس کښې ئې چوګان ؤ د باور — مصري خان

د زړه مينه پــــه مــــژال لـــکه پټک ده
چې د ګوئي څښتن و هله هورته رغښته — خوشحال

**پټـــک** :- (پْ + ټَ + کْ) [ اف : پ ، اس ، مـــذ ، وا ، ج : پټکونـــه ] د ميچوغنې خولۀ.

**پټک** :- (پْ + ټْ + کْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د خوراک د ګولو يو قسم ، خوږې ګولۍ ، پپرمنټ.

**پټ کاګے** :- (پَ + ټْ + کا + ګے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د هلکانو د يوې لوبې نوم ، چې پکښې يو لرګے د نورو لرګو په ذريعه د يوې دائرې نه بهر اوباسي. مونډې.

**پټکړے** :- (پْ + ټَ + کْ + ړَے) [ پ (ګن) ه : پهټکړی ، اس ، مذ ] پټکنے ، د مالګې په شان يو څيز چې د دوايۍ په ډول استعمالېږي. د ګزک يا ګزيک د ختمولو دپاره فائده مند دے.

**پټکنے** :- (پْ + ټَ + کَنْ + ړَے) [ پ ، (ب،خ) اس ،مذ] و ـ پټکړے.

**پټکه** :- (پْ + ټْ + کَه) [ اف : پ(قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پټکې] کچه پنير ، يو قسم کُرت.

**پټکه** :- (پَ + ټْ + کَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پټکې] اګو ته تياره چرګه ، پته ، بټله.

**پټکه**:- (پَ + ټْ +کَه) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ] (۱) کمربند ، ملابند ، د ملا د تړلو پېټې يا پټۍ. (۲) د مرغو د نيولو يوه لُومه يا دام.

**پټکه** :- (پْ + ټْ + کَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] زورنه ، سپورې ستغې ، بد رد ، قهر ، تنبيهه ، بې عزتي ، کاوړ.

ـــــ **کول** :- (اف) اص. ټکه ورکول ، زورل ، زورنه کول ، سپورې ستغې وئيل ، بد رد وئيل ، بې عزته کول ، کاوړ کول.

ـــــ **ورکول** :- (اف) اص. و ـــ پټکه کول.

**پټکے** :- (پَ + ټْ + کَے) [ پ ، ه : پټکا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پټکي] (۱) پګړۍ ، دستار (۲) عـزت ، لـوئي ، حيا وقـار ، درناوے. (۳) د جائيداد وغېره په تقسيم کښې د مشري زوې زياتي برخه. انعام (۴) ب ، خ. څادر ، لوپټه ، ټکرے ، داوڼ.

بيـا پــټکے ئـې پـه سـر کـوړ کښېښـود خيـال
چـې خوبـا دې پـه خولـه نـوم واخسـت خوشـحاله

ـــــ **په سر کول** :- (اص) (۱) دستار يا پګړۍ تړل ، پټکے په سرول ، (۲) د مراني جوګه کېدل ، (۳) ځوانۍ ته نژدې کېدل (۴) ب ، خ د زنـــــانۀ لوپټه په سر کول.

ـــــ **په سرول** :- (ب ، خ) اص. و ـــ پټکے په سر کول.

ـــــ **چاته پسرول** :- (اص) (۱) چاته عزت يا درناوے ورکول (۲) د چا ذ عزت خيال ساتل ، د عزت په موقع د چا بې عزتي کول ، د غُلو پېټے ور په سر کول (۳) ب ، خ. تورسرې ته د عزت او درناوي په ډول لوپټه په سر اچول.

ـــــ **په پښو کښې غورزول** :- (اص) (۱) د خپل سر نه دستار يا پګړۍ راکوزول او چا په پښو کښې اچول (۲) د خپل عزت په واسطه د چا نه څۀ بخښنه وغېره غوښتل. په ډېره عاجزۍ د چا منت زاري کول (۳) ب ، خ. د تور سرې خپله لوپټه د نارينه په پښو کښې اچول. په پښتونخوا کښې چې زنانه داسې حرکت اوکړي نو خلق هر قسم معافي ورکوي.

ـــــ **په پښو کښې کښېښودل** :- (اص) و ـ پټکے په پښو کښې غورزول

ـــــ **تړل** :- (اص) (۱) دستار تړل ، پګړۍ په سر کول (۲) دستاربندي کېدل ، د مشرۍ په ځـاے کښېناستـل ، د پـلار ځـاے نيـول (۳) د دستار تړلو جوګه کېدل ، د ځوانۍ بوئي پرې لګېدل ، شونډه شنه کېدل ، (۴) د سجاده نشين يا استانه دار په دستاربندۍ کښې د مريدانو حصه اخستل. هلته هر يو کس يو يو ول د هغۀ په سر تاووي

ـــــ **کوزول** :- (اص) (۱) د سر نه دستار يا پګړۍ بېرته کول (۲) د بې ننګۍ او بې عزتۍ کار کول (۳) شرمول ، بې حيا کول ، کله چې څوک د خپل مخالف د سر نه پټکے کوز کړي نو دا د شرمولو علامه ګڼلے شي. (۴) د زنانۀ د سر نه لوپټه بېرته کول چې دا ډېره بې عزتي او بې ستري شمارلے شي.

ـــــ **ګوزېدل** :- (اص) (۱) د سر نه دستار يا پګړۍ بېرته کېدل (۲) د بې ننګۍ او بې عزتۍ کار کول (۳) شرمېدل ، بې عزته کېدل شرم حيا اخستل (۴) د ښځې اِې شرمېدل.

ـــــ **ورکول** :- (۱) چاته دستار يا پګړۍ ورکول (۲) بډې رشوت ورکول (۳)خلعت او انعام ورکول (۴) تور سرې ته لوپټه ورکول.

**د پټکي ول** :- (اص) (۱) د دستار يو تاؤ ، (۲) د پلار د غاړې خپلوان

**د مشرۍ پټکے** :- (۱) د مشري زوے په جائيداد کښې د خپلې حصې نه زياته برخه (۲) د مشرۍ مننه.

**د مشرۍ پټکے پـه سرول** :- (اص) د مشرۍ په ځـاے کښېناستـل ، مشر جوړېدل

**پټکنۍ** :- (پْ + تـټ + کْ + نْ + يَـې) [ اف: پ (قاموس) اس ، مـؤ] د پـټ کښېناستو ځـاے ، هغه ځاے چې سرے پکښې د څۀ غرض دپاره پټ کښېني. د ښارلو ځـاے ، پسونے ، د ځؤ مورچه.

ـــــ **جوړول** :- (اص) د ځؤ ځاے جوړول ، پټکنۍ کول، د پټ کښېناستو ځاے جوړول ، پسونے جوړول.

ـــــ **کول** :- (اص) و ـــــ پټکنۍ جوړول.

**پټکوټے** :- (پَ + ټْ + کُوْ + ټَے) [ پ ، اسم ، تصغير ] (۱) وړوکے پټکے، دستارګے ، (۲) وړوکے ښادر، ښادرګے.

**پټله** :- (پْ + ټَ + لَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] اګو تـه تيـاره چرګه ، پټکه ، پته.

**پټلۍ** :- (پَ + ټْ + لَ + ی) [ پ ، ه : پټـړي ، اس ، مــؤ] (۱) پـاټلۍ د اورګاډي سړک ، (۲) د ولې او نهر د غاړې کچه سړکونه.

**پټم** :- (پَ+ټْ+مْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، و ، ج: پټمونه] ورخ، لښتے.

**پټ مخ** :- (پَ + ټْ + مَ + خْ) [ پ ، اس ، ص ، مذ] (۱) پټه څېره ، چې مخ ئې ليدۀ نۀ شي. (۲) پټ په پټه ، بې اجازته ، په خپل مخ.

**پټ مخے** :-(پټ + مْ + خَے) [ پ ، (خل) اس ، مـذ] ګُونډے ، ګنډولے د غنمو دانې چې د غوبل کولو نه پس د وړې په پرده کښې پاتې شي.

**پټن** :- (پَ + ټَ + نْ) [ ه ، اس ، مذ ] پتڼ ، ګُودر ، پټهنګ.

**پټن** :- (پَ + ټْ + نْ) [ پ (سو) اسم علم ] د سوات يوه غرئيزه علاقه.

**پټن** :- (پِ + ټَ + نْ) [ ه ، اس ، مذ ] پتڼ ، ماتم ، وير ژړا.

**پتن پالس** :- (پتن + پا + لَ + سْ) [ پ (سو) اسم علم ] د سوات په کوهستان کښې مشهور کلے ، چې ورڅخه خوا کښې د اباسین شاه راه تیرېږي۔

**پټن**:- (پِ + ټَ + نْ + ړ) [ اف : پ (عا) اس ، مؤ ـ ج : پټنې] ـ پلټن یا پلټن ـ د فوځ یوه دسته ـ چې څو کمپنۍ پکښې وي ـ لوبه: پټنې تولې په لام لاړې ـ په کابل جنگ جنگ دے ـ "

**پټنګ** :- (پِ + ټَ + نْ + ګْ [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ــ پټن۔

**پټنه** :- (پُ + ټْ + نه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] پټوالے ، پرده۔

**پټنې** :- (پِ + ټَ + نې) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] هغه اندام چې پټول ئې ضروري وي۔

**پټن** :- (پِ + ټَ + نْ) [ پ (گن) اس ،مذ] و ـــ پټن۔

**پټن** :- (پَ + ټْ + نْ) [ پ (عا) اس ، مؤ، ج : پټنې ] پلټن یا پلټن ، د فوځ یوه دسته چې څو کمپنۍ پکښې وي۔

**پټو** :- (پْ + ټُوْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پټوان ، پټوگان ] (۱) وړین څادر ، چې کابلے څادر هم ورته وائي ـ شال (۲) هغه پټې داره وړینه کپړه چې پخوا به ترې زنانه ؤ جامې جوړولې۔

**پټوار** :- (پَ + ټْ + وا + رْ) [ه ، اس ، مذ ] (۱) د زمکو د کچ مېچ علم (۲) پټواري ، مرزا ۔

**پټوارخانه** :- (پټوار + خا + نَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پټوار خانې] پټرخونه ، د پټواري یا مرزا دفتر ۔

**پټواري** :- (پَ + ټْ + وا + رِيْ) [ ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : پټواریان ، پټواریون ] مرزا ، د زمکو حساب ساتونکے ، منشي ، د حد فصل د زمکې او د مالیې جاج اخستونکے۔

**پټوالے** :- (پْ + ټْ + وا + لَے ) [ پ ، حمص] پټونه ، د پټولو کار ۔

**پټوخ** :- (پَ + ټُوْ + خْ ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : پټوخي (مؤ ، وا: پټوخه ، ج : پټوخې ) ] و ـــ پتخ۔

**پټوسکے** :- (پْ + ټُو + سْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پټوُسکي] (۱) پُوټسکے ، لښ شان ، ذره شان ، پُوټے ، بوچړے ،بوچړکے ، پسانړے ، بُټوسکے ، (۲) د ډوډۍ پاتې ذرې ، بورې ، پتخې۔

**پټُوسکے** :-(پُ + ټُوْ + سْ + کَے) [پ،اس، مذ ، وا ، ج :پټوسکي] و- پټُوسکے

**پټُوکے** :- (پْ + ټُوْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پُټوکي] (۱) لږ څیز (۲) د بادرنګ ، کدو ، توري وغېره پوټکے ، پوستکے یا پتخے ، (۳) د اوني پوټ ، پاټ یا پوټکے۔

**پټول** :- (پَ + ټو + لْ) [اف : پ (قاموس) اس،مذ] د یوې حلالې مرغۍ نوم

**پټول** :- (پْ + ټَ + وْ + لْ ) [ پ ، مص مت] (۱) په څهٔ څیز سرپوش یا برغولے کېښنول (۲) جامه اغوستل (۳) غلا کول ، په پردې څیز په پټه قبضه کول۔

**سر پټول** :- (اص) (۱) په سر دستار ، ټوپۍ یا څادر کښېښنول (۲) پناه اخستل (۳) د ښځې وادهٔ کول۔

**پټولي** :- (پَ + ټو + لِيْ ) [ پ (گن) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پټولیان] زرگر چې امبل جوړ کړې نو د هغه دانې په رېښمین تار کښې پېرونکې کس ته وائي ـ پټوه گر ، رېښم گر ۔

**پټون** :- (پْ + ټُوْ + نْ ) [ اف ، پ (قاموس) اس ، مذ] څؤ ، مورچه پټ ځاے ، باره ، مچان ، پټونے۔

**پټونګ** :- (پْ + ټَ + وْ + نْ + ګْ ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و- پټونه ۔

**پټونه** :- (پْ + ټَ + وْ + نَه ) [ پ ، حمص] (۱) په څهٔ څیز سرپوش یا برغولے کښېښنونه ، (۲) جامه اغوستنه ، (۳) د څهٔ څیز په پټه قبضه کونه ۔

**پټونے** :- (پْ + ټُو + نَے ) [اف :پ (قاموس) اس، مؤ، وا ،ج : پټونې] و- پټون

**ـــــ کول** :- (اف) اص ـ (۱) په مورچه کښې پټېدل، (۲) شرم او حیا کول، د شرمه مخ پټول ۔

**پټوُونکے** :- (پْ + ټَ + وُوْ + ن + کَے ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: پټوُونکي ] (۱) څهٔ څیز باندې سرپوښ یا برغولے کښېښنونکے ، پټوونے (۲) اغوستوُنکے (۳) غلا کوُنکے ، غل (۴) د ماشومانو یوه لوبه۔ (پټ پټونه) ۔

**پټوُونے** :- (پْ + ټْ + وُوْ + نَے ) [پ، اس ، فاع ، وا ، ج : پټووني و- پټوونکے

**پټوُونے** :- (پْ + ټَ + وُوْ + نَے ) [ پ (شن) اس ، مذ] و ـــ پټ پټانه۔

**پټوونے** :- (پَ + ټْ + وُوْ + نَے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پټووني] وړین څادر ۔

**پټوه** :- (پَ + ټْ + وَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: پټوې] (۱) مزے ، کندے ، ډورۍ ، (۲) بټوه۔

**پټوه**۔ (پ+ټ+وَ+ه) [اسم:مؤ،وا،ج:پټوې] ،د مزري بوټي مېوه۔

**ـــــ کول** :- (اف) اص ـ د تسپو مزے په څونډې کښلے ښکاري ـ د ښائست دپاره یا ډول ښېوې دپاره په خاصه طریقه کالي پئیل۔

**پټوه گر** :- (پټوه + گَ + رْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ (مؤ، وا : پټوه گره ، ج : پټوه گرې ] رېښم گر ، پټولي۔

**پټوینے** :-(پَ + ټْ + وِيْ + نَے ) [ پ (وز) اس ، مذ ، وا ، ج : پټ وینې] برستن ، گنځن ، شیرک ، نالۍ۔

**پټه** :- (پْ + ټَه ) [ پ ، اس مؤ ، وا ، ج : پټې ] (۱) د تورې ، ټوپک او چړې د کځورې تسمه ، (۲) د نایانو د څرمنې هغه ټکړه چې چاړهٔ پرې مږي (۳) هغه څرمن چې د سپي په غاړه کړے شي او زنځیر پکښې اچولے شي (۴) د ونې پوستکے ، پټ (۵) تخته ، (۶) د اندر پایې پاټکے ، (۷) ډوریا ، د تارونو هغه کپړه چې پکښې د بل رنګ تارونو کرښې تلې وي ـ پټېدار ټوکے (۸) د سوداګرۍ د مال د وړو راوړو د معافۍ سند ، پرمټ ، راداري (۹) شکایت ، (۱۰) د اوسپنې پټۍ چې د ور د بندولودپاره په سورو ورکولے شي ـ د لارۍ یا موټر کمانۍ۔

**پټه**:-(پْ + ټه ) [ پ ، اس، مؤ] (۱) پناه والے ، پټوالے (۲) راز (۳) په غلا۔

**ـــــ خوړل**:-(اص) په غلا خوړل ، په پرده کښې خوړل ، پټ په پټه خوړل۔

**د پټه ایستل** :- (سو) اص۔زیاته کونه ورکول، چغلي کول، کاسیري کول۔

**پټه بلا** :- (پټه + بَ + لا) [ پ ، اس مؤ ، وا ، ج : پټې بلا ، پټې بلاګانې ] (۱) پټ آفت ، په نظر نهٔ راتلونکے تکلیف۔ (۲) بؤ بلا ۔

**پټه بیماري** :- (پټه + بِيْ + ما + رِيْ) [ پ ، اس ، مؤ، وا ، ج : پټې بیماري] پټ مرض ، شرمولې بیماري ، د بې عزتۍ مرض۔

**پټه پټه** :- (پټه + پټه ) [ پ ، اس مر ، مؤ ، وا ، ج : پټې پټې ] په غلا غلا ، پټ په پټه ، په راز کښې ، ځان ته۔

**پټه پناه** :- (پټه + پَ + نا ) [ پ ، ص ] پټ پناه ، په غلا۔

**پټه خبره** :- (پټه + خَ + بْ + رَه ) [ پ ، اس ، مر ، مؤ ، وا ، ج : پټې خبرې ] پټه قصه ، د پردې خبره ، د راز وینا ۔

**پټه خولهٔ** :- (پټه + خُ + لهٔ ) [ پ ، اس مر ، مؤ] چپه خولهٔ ، خاموشه۔

زهٔ مکتوب غوندې په پټه خولهٔ گویایم

لاندې کړله خاموشۍ غوغا زما — رحمٰن بابا

**ـــــ اچول** :-(اص) د سپي یا اوښ په غلا خولهٔ لګول ، غلې حمله کول ۔

ـــــ **پاتې کېدل** :-(اص) خاموش پاتې کېدل، خواب نهٔ کول، غلې پاتې کېدل

ـــــ **کښېناستل** :- (اص) چپ او خاموش کښېناستل ، د چا په کار کښې څهٔ کار نهٔ لرل

ـــــ **کول** :- (اص) څوک چپ کول ، خاموشه کول ، غلے کول ، خبرو ته نهٔ پرېښودل۔

ـــــ **کېدل** :-(اص) چپ کېدل، خاموشي اختیارول ، غلے کېدل ، څهٔ نهٔ وئیل

ـــــ **نیول** :- (اص) د دُرجن کار کولو په وخت کښې تربوزک وهل۔

**په پټه خولهٔ کار کول**:- (اص) پټ په پټه او په خاموشۍ کار کول ، د چا د خبرو نه بغیر څهٔ کار کول۔

**پټه دار** :- (پٔ + ټَه + دا + رْ) [پ ، اس ، مذ(مؤ ، وا: پټه داره ، ج: پټه دارې) ] د خټکي او خربوزې یو قسم ، او هر هغه څیز چې کربښې کربښې پکښې تلې وي ۔

**پټه راپټه** :- (پټه + را + پټه) [پ ، اس مر ، مؤ ، وا، ج پټې راپټې] و ـــــ پټ په پټه ۔

**پټه سودا** :-(پټه + سَو + دا) [پ ، اس ، مر ، مؤ ،وا، ج : پټې سوداګانې] (۱) د غلا سودا (۲) د زړهٔ راز۔

**پټه قصه** :- (پټه + قِ + صَه) [پ ، اس مر ، مؤ ، وا، ج : پټې قصې]و- پټه خبره

**پټۍ** :- (پَ + ټَ + یْ) [پ ، اس ، مؤ] (۱) د ماشومانو سر تړونے ، سکلے ، سکلکے (۲) په زخم پټۍ (۳) تخته (۴) د ملا تړلو پټه ، پېټي (۵) د ټوکي یوه اوږده ریښه (۶) د پلنګ نوار ، پټار (۷) د الف بې د تورو قطار (۸) د بټېرو نیولو جال (۹) د فوځیانو د پښو تړلو تسمه۔

ـــــ **بدلول** :- (اص) د زخم دپاسه تړلې پټۍ خلاصول او بیا تړل ۔پټۍ نوې کول، پټۍ کول

ـــــ **بدلېدل** :- (اص) د زخم پټۍ نوې کېدل۔

ـــــ **تړل** :- (اص) (۱) په زخم پټۍ راڅرخول (۲) د فوځي په پښو پټۍ راغبر ګول۔

ـــــ **کول** :- (اص) په زخم پټۍ لګول۔

ـــــ **لګول** :- (اص) د بټېرانو د نیولو دپاره جال لګول۔

ـــــ **لګول** :- (اص) (۱) په زخم پټۍ تړل (۲) د چا زړهٔ بداوے په پېسو ورکولو لرې کول (۳) ورانه خبره جوړول۔

ـــــ **لګېدل** :- (اص) (۱) په زخم پټۍ تړلے کېدل (۲) د چا زړهٔ بداوے په پېسو ورکولو لرې کېدل (۳) ورانه خبره جوړېدل۔

ـــــ **لوستل** :- (اص) (۱) د الف بې توري لوستل ، سبق شروع کول (۲) د چا په لمسه کښې راتلل۔

ـــــ **لولول** :- (اص) (۱) چاته الف بې ښئیل ، سبق شروع کول (۲) د رقیبانو خبرې اورېدل ، لمسون ته غوږ کښېښول۔

ـــــ **لیکل** :- (اص) د الف بې توري په تختۍ لیکل ، لیک زده کول

ـــــ **نښتل** :- (اص) (۱) د پټۍ په زخم ټینګېدل (۲) د خبرې سمون اخستل ، خبره جوړول

ـــــ **نوې کول** :- (اص) و ـــــ پټۍ بدلول۔

**پټے** :- (پَ + ټے) [پ ، اس ، مذ ، وا، ج : پټي] د کروندې زمکه ، هغه زمکه چې کر پکښې کېدے شي۔

څوک په خپل پټي کرل کا دا غزیو
چـا پــه خپل پټي ګلونه دي کرلي
خوشحال خان

ـــــ **اړول** :- (اص) پټي کښې یوې کول ، په پټي کښې قلبه کول۔

ـــــ **په یوه کېدل** :- (اص) په پټي کښې یوې کول ، اړول۔

**باران پسې پټے وړل** :- (مح) خوشامنده کول ، د چا د خوشحالولو دپاره په جائزه او ناجائزه 'هو' کول۔

**پټې** :- (پَ + ټَې) [پ ، اس ، مؤ ، ج] (۱) په غلا (۲) په راز کښې ۔ (۳) بند ۔

ـــــ **اوبهٔ بوول** :- (اص) د بوسو لاندې اوبهٔ بوول ، پټ په پټه څهٔ خبره سرته رسول۔

ـــــ **سترګې** :- (اص) (۱) بند سترګې ، تړلې سترګې (۲) بې پروا ، (۳) بې سوچه (۴) په خیال کښې ، په تصور کښې۔

**پټي پالا** :- (پَ + ټيْ + پا + لا) [اف : پ (قاموس) ص] (۱) پټ پنا ، پټخ (۲) سرګردانه او حیرانه ، د لېوني په شان سر وهلے بر وهلے۔

**پټې پټې** :- (پَ + ټې + پَ + ټې) [پ ، ص] کربښې کربښې ، پټه دار

بیا ئې واغوست سپین قمیص پټې پټې
بـــانـــدې زلفې څنـــه دې لټې لټې خوشحال

**پټې ټیکې** :- (پټې + ټِيْ + کې) [پ ، اس ، ص ، مؤ ،ج] پټې دانې د ګنډ اینه ټکرې ټکرې وریته کړے شي ۔بیا هره ټیکه په وازده کښې ونغاړي او سر دوباره ئې په اوړ ونیسي ، دې ته پټې ټیکې وائي۔

**پټې دانې** :- (پټې + دا + نې) [پ (شن) اس،مؤ،ج] و ـــ پټې ټیکې

**پټیخ** :- (پَ + ټِيْ + خْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) سخت ، ځیږ ، دیژ (۲) د چړو چاقوانو تېرولو کټه ، برجو ۔

**پټېدل** :- (پ + ټې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] (۱) پناه کېدل ، په نظر نهٔ راتلل ، غایبېدل (۲) په څۀ کښې کښېناستل ۔مورچه نیول (۳) په غلا ورلے کېدل یا بوتلے کېدل (۴) څادر ، کمبله یا برستن په ځان اچول (۵) د یو ځاے نه په غلا پښې ویستل۔

**پټېدنګ** :- (پْ + ټي + دْ + نْ + ګْ) [اف :پ (قاموس) حمص] (۱) و ـــ پټېدنه (۲) د ماشومانو یوه لوبه۔لکه پټ پټوڼے۔

**پټېدنه** :- (پْ + ټي + دْ + نَه) [پ ، حمص] (۱) پناه کېدنه ، د نظر نه بېل خوا کېدنه ، پټېدۀ ، غائبېدنه (۲) څادر ، کمبله یا برستن وغېره د ځان نه چاپېره کونه (۳) د یو ځاے نه په غلا پښې ویستنه۔

**پټېدُونکے** :- (پْ + ټي + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا، ج : پټېدونکي] (۱) پټېدونے ، پناه کېدونے ، په نظر نهٔ راتلونکے ، نهٔ ښکارېدونکے (۲) څادر ، کمبله یا برستن وغېره د ځان نه چاپېره کوُونکے (۳) د یو ځاے په غلا پښې ویستونکے ۔

**پټېدۀ** :- (پْ + ټي + دۀ) [پ ، حمص] و ـــ پټېدنه۔

**پټیره** :- (پَ + ټِيْ + رَه) [پ ، اس ،مؤ ، وا، ج : پټیرې] پټېره ، په اره جوړ شوے څلور ګوټے اړکے ، چالۍ ، کړۍ ، چاربوزه ، شاه تیر ، بس ، ښېنش۔

**پټېره** :- (پَ + ټي + رَه) [اف : پ (قاموس) اس مؤ ، وا، ج : پټېرې] و- پټیره۔

**پټیک** :- (پَ + ټيْ + کْ) [پ (عا) انګ : فټیک ، اس ، مذ ، وا ، ج: پټیکونه] د جمعي کار ، په ټاله محنت مشقت۔

**پټېل** :- (پْ + ټي + لْ) [ه، اس، مذ، وا،ج: پټېلان (مؤ ، وا: پټېله ، ج : پټېلې)] (۱) ملک ، نمبر دار ، چودهري، مشر(۲) د مرهټوؤ لقب۔

**پټېلن** :- (پْ + ټي + لْ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پلېټن ، پلېټن ، د جولاهغه لرګے چې تنسته ترې تاووي۔

**پِټې مُو** :- (پ + ټْ + ټي + مُوْ) [پ (عا) پن : پهټے مُنه ، کلمه] د لعنت کلمه۔تُو لعنت ، مخ دې ورک شه ، اوشرمېږې۔

**پُټیین** :- (پُ + ټِيْ + نْ) [پ (عا) انګ : پُډنګ ، اس ، مذ] (۱) د خوراک حلوا ، ټینګه فرني (۲) هغه مساله چې د شیشو د ټینګولو دپاره په

دروازو او کړکو کښې لګېدے شي.

**پټېنه** :- (پْ + ټې + يْ + نَه) [ پ (وز) حمص] د پټېدو ځائے موندل

**پـڃ** :- (پَ + ڃْ) [ اف :پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پڃُونـه ] د وینـې یستو نشتر ، پچنه ، الموس

**پڃـاري** :-(پُ + ڃـا + رِيْ) [ ه ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پُڃاریـان] (۱) د بُـت عبادت کوُونکے ، بُت پرست (۲) مئین ، عاشق ، په معشوق لوغړن

**پڃنـه** :- (پ+ ڃْ + نـه ) [ اف : پ (قـاموس) مـؤ ] ګُروشـېدنه ، خـراش ، د څرمنې غوڅېدنه.

**پڃه** :- (پَ + ڃَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پڃې ] د خاورین لوښو پخولـو ځـاے. آوئ ، د کُلال بټۍ ، د کُلال څُوَن.

**ـــــ اچول** :- (اص) (۱) د خټې کچـه لوښـي تیـارول ، د کـلال څـون یـا اوئ خېژول (۲) ډېر بچي کېدل ، زیاته بال بچه داري.

**ـــــ اوباسل** :- (اص) لوښي د پخېدو نه پس د پڃې نه رایستل ، په اوئ یا څون کښې لوښي کودي د پخلي نه پس رابهر کول.

**ـــــ راتلل** :- (کاکاخېل) اص. د خرڅ دپاره د خاورو لوښي بازار یا منډۍ ته راوړل

**ـــــ سره کول** :- (اص) څون یا اوئ ته اور ورته کول ، د کُلال بټۍ ګرمـول ، لوښي پخول ، او ورته کول.

**پڃـه وال**:-(پڃـه + وا + لْ) [ پ ، اس ، مـذ (مـؤ ، وا : پڃـه والـه ، ج: پڃـه والي) ] کُلال د پڃې کار کوُونکے ، د خاورو لوښي جوړوونکے.

**پڃ** :- (پْ + ڃْ) [ پ (ګن) ص ، مذ (مؤ ، وا: پڃه ، ج : پڃې)] پڅ ، چې تېرۀ نۀ وي لکه پڃ چاقو.

**پڃ** :-(پَ + ڃْ) [ اف : پ (قاموس) اُر : پچیکـاري ، اس ، مـذ] هغـه ښـکلے او نفیس ګل ، چې په ښیښه یا اوسپنه وغېره نقش شوے وي.

**پڃاړي** :- (پَ + ڃا + ړَ + يَيْ) [ پ ه : پچهـاړي ، اس ، مـؤ ] (۱) پچواړۍ ، پچوړه ، هغـه رسۍ چې د اسونو روستو پښو ته اچولے شي (۲) د کـټ لنګه ، پڃاوړي.

**پڃاوړي** :- (پ + ڃا + وْ + رِيْ) [ پ (ګن) اس ، مؤ] و ـــ پڃاړۍ.

**پڃپڃُونکے** :- (پَ + ڃْ + پَ + ڃُوْ + نْ + کَے ) د ماشومانو یوه لوبه.

**پُڃ خولے** :- (پُ + ڃْ + خُوْ + لَے) [پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : پُڃ خولي] پُوچې خبرې کوُونکې ، سپکې خبرې کوُونکې ، پوچ خولے ، کنځل مار.

**پڃړاک** :- (پَ + ڃ + ړا + کْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د پرتوګ بډه ، د پرتوګ هغه مورے چې پرتوغ ابښ بګه یا لال پکښې اچولے شي.

**پڃکـــاري** :- (پِ + ڃْ + کـــا + رِيْ) [ اُر ، اس ، مـــؤ ، وا ، ج : پڃــاري ] (۱)هغه اله چې د هغې په ذریعـه د صـابون اوبـۀ د خېټې صفا کولـو دپاره ننه کولے شي. (۲) د هوا پمپ.

**ـــــ کول** :- (اص) د یوې الې پـه ذریعـه خېټې تـه د صـابون اوبـۀ ننـه کـول چې د هغې په وجه خېټه صفا شي.

**ـــــ کېدل** :- (اص) د یوې الې په ذریعه خېټه صفا کېدل.

**پڃکولمـه** :- (پُ + ڃْ + کُـوْ + لْ + مَـه ) [ پ ، اس ، مـؤ ، ج : پڃکُـولمې] غوړه کُولمه ، د ګډ وغېره وازګینه کولمه.

**پڃکـي** :- (پُ + ڃَ +کـيْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] کچـه بادرنـګ ، بادرنګ او تره وغېره چې لاوړوکے وي. نـوے رسېدلے وي. لا غټ شوے نۀ وي. پڃۍ.

**پڃګۍ** :- (پْ + ڃ ِي + ګۍ) [ پ ، اسم ، معر ] د پېښـور ښـار پـه خـواؤ شا کښې د یو کلي نوم.

**پچموزه** :- (پَ + چْ + مو + زَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پچموزې] پچمـه ، ټوقه ، مسخره ، خندا ، ملنډه.

**پچمـوزې** :- (پَ + چْ + مُـو + زې) [ پ ، اس ، مـؤ ، ج ] پچمـې ، ټـوقې ، مسخرې ، نخول ، د چا د بې عزتۍ کولو دپاره ټوقې ټقالې کول.

**ـــــ کول** :- (اص) مسخرې کول ، د چـا د بـې عزتۍ دپـاره ټوقې ټقالې کول. ملنډې کول ، نخرې کول.

**پچمه** :- (پَ + چْ + مَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پچمې ] و ـــ پچموزه

**پچمې** :- (پَ + چْ + مې) [ پ ، اس ، مؤ ، ج] و ـــ پچموزې.

هېڅ در نۀ پوهېږم که ربښتیا وائې که پمچې

مـــا وتـــه د خوله ده په خندا خندا نومړے خوشحال خان

**پچن** :- (پْ + چْ + نْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: پچنه ، ج : پچنې) ] (۱) پـه بـدن کمـزورے ، د سـپک وجـود خاونـد (۲) بـد رنګ ، سخا ، بد شکل.

**پچنه** :- (پَ + چَ + نه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پچنې ] (۱) هغـه اوزار چې د وینې یستو دپاره په بدن خراشونه لګوي. (او دې نه پس پـه دغـه ځـاے ښکر اولګولے شي) (۲) اف : د بدن خراش یا غُوڅ کړے ځـاے ، ګُروشېدلے ځاے ، رنګېدلے ځاے (۳) اف : ړنده آئینه ، یاونیه.

**پچنې** :- (پْ + چْ + نې) [ اف : پ (قاموس) ص] په نشتر وهلے شـوے زخـم .زخمي شوے ، ګروشېدلے ، رنګېدلے.

**پچنې** :- (پَ + چْ + نې) [ پ ، اس ،مؤ ، ج] و ـــ پچنه.

**ـــــ لګول** :- (اص) د وینې یستو دپاره په یوه خاصه الـه خراشونه لګـول ، او چې وینې را روانې شي نو بیا پرې ښکر ښخول.

**پچواړ** :-(پ + چْ + وا + ړْ) [ پ ، اس ،مذ] د خېرې روستے سر او دُنبال ، د باران هغه څاڅکي چې د باد په زور دننه راځي. پاچړ (سوات).

**ـــــ راکښل** :- (اص) ختمه شوې خبره. اوږدول ، تاروهل (سوات).

**پچواړۍ** :-(پ+چ + وا + ړَۍ) [ پ ، ه : پچهاړي ، اس ،مؤ] و ـ پڃاړۍ.

**پچوچ** :- (پَ + چو + چْ) [ پ (ګن) اس ، مذ ، وا ، ج: پچوچُونه ] جاسوسي غمازي.

**پچـوچي** :- (پَ + چـو + چِـيْ) [ پ (ګـن) اس ، مـذ ، وا ، ج : پچوچیـان] جاسوس ، غماز ، هغـه څوک چې د راز معلوملولو دپاره مجلس تـه ننوزي.

**پچـورے** :- (پَ + چُـو + رَے ) [ اف : پ (قـاموس) اس، مـذ ، وا ، ج : پچُوري] څادر ، لوپټه ، ټیکرے ، پټکے.

**پچوړه** :- (پ + چؤ + ړَه) [ پ (ب ، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : پچوړې] و ـــ پڃاړۍ.

**پچول** :- (پْ + چَ + وْ + لْ) [ پ (ګن) مص مت ] پڅول.

**پچونه** :- (پْ + چَ + وْ + نَه) [ پ (ګن) حمص ] پڅونه.

**پچونے** :- (پ + چو + نَے) [ پ ،ص ، مذ ، وا ، ج : پچوني (مؤ : پچونۍ) ] وړوکے ، ورکوټے ، پُوچے غوندې ، ماشوم.

**پچوُونکے** :- (پْ + چَ + وُوْ + نْ + کَے) [ پ (ګن) اس ، فـا ع ، مذ ،وا ، ج : پچوُونکي] پڅوُونکے.

**پچـوې** :- (پْ + چْ + وَې) [ پ ، اس ، مـذ ، ا ، ج : پچـوي ] (۱) د غـوا د لکۍ زُونډے (۲) بچوې ، برچوې ، د وړۍ یا د تـارونو جوړ شـوے هغه زونډے چې زنانه ئې د سر وېښتو سره تړي. پېوے ، څونکه.

هغه زړونه چې مدام له دړده چوي

چې وهلي ئې دي د زلفو په پچوي علي خان

**پچه** :- (پَ + چَه) [ پ ، اس ، مؤ] د هلکانو د یوې لوبې نوم. په دې کښـې څادر نه یو غونډسکے جوړ کړي او یـو پسـکے ئې بهر پرېږدي. ورلـه

غوټه ورکړي ، یو هلک د پښې د غټې ګوتې او ورسره د بلې ګوتې په ګروت کښې اونیسي او مخامخ ولاړ هلکانو ته ئې په پښه وراوغورزوي ـ هغوي ئې په هوا کښې نیسي ـ

**پچه** :- (پَ + چَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پچې ] د وُنو نرۍ څانګې چې د چت د اډانې دپاسه اچولې شي ـ چانه ـ

**ــــ اچول** :- (اف) اص ـ د چت د اډانې دپاسه نرۍ څانګې او خشاک اچول ـ

**پچه** :- (پَ + چَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پچې ] (۱) د بکیانې د ونې ترخه مېوه ، چې داروګانو کښې استعمالېږي ـ اړرۍ (۲) په قد جوثه ورکوټې او هوښیار ماشوم هلک (۳) د ګډې ، بېزې ، اوښ یا سوېې وغېره لوے بول چې د وچو غونډارو په شان وي ـ دغه شان د بنیادم وُچ بول (۴) ایسک ، اسک ، فال ، قُرعه ، (۵) بوسه ، چپې ، خولهٔ ، مچه (۲) ب ، خ ـ د ماشوم د تشوبولو سوخۍ ، پچۍ ، چونۍ ، نونۍ ـ

**ــــ اچول** :- (اص) ایسک اچول ، قرعه اچول ، د پچو ، کاڼو ، ګیټګو او ډکو په ذریعه د څهٔ معاملې فېصله کول ـ

**ــــ انښتل** :- (ظفر) په څهٔ کار کښې بندېدل ، موتازه کېدل ، په تکلیف کښې ګېرېدل

**ــــ پرې اچول** :- (اص) (۱) د پچې یا ایسک په ذریعه د څهٔ څیز یا کار وېش کول (۲) په چا ظلم کول ، زور زیاتے کول ـ

**ــــ ختل** :- (اص) ایسک یا قرعه د چا په نوم راختل ، پچه راوتل ـ

**ــــ راوتل** :- (اص) و ــــ پچه ختل ـ

**ــــ سره اچول** :- (اص) و ــــ پچه پرې اچول ـ

**ــــ کول** :- (اص) د پچې لوبه کول ـ

**ــــ ګټل** :- (اص) ایسک ګټل ، پچه وړل ـ

**ــــ وړل** :- (اص) و ــــ پچه ګټل ـ

**پر پچه ختل** :- (اف) اص ـ (۱) بېهودګي او غرور کول (۲) په ایسک یا په پچه څهٔ څیز د چا په نوم راختل ـ

**په پچه** :- (اص) هېڅ ، بې قدره ، بې قیمته ،

**په پچه رسېدل** :- (اص) د پچې یا د ایسک په ذریعه په برخه رسېدل

**په پچه ګټل** :- (اص) د ایسک یا د پچې په ذریعه ګټل ـ

**د چا په چاباندې پچه ختل**:- (ظفر) څوک په چا مهربانه کېدل ـ

**پچۍ** :- (پَ + چَ + ی) [ پ (سو) اس ، مؤ] و ــــ پچه

**پچۍ** :- (پَ + چَی) پ ، اس ، مؤ] د مېزرو یا د لوخې جوړه وړه ټوکرۍ پټورۍ ـ

**پچۍ** :- (پُ + چَی) [ پ ، اس ، مؤ] د سبزۍ ، ترکارۍ وړه غوټه یا دانه ، پُچکے

**پچې** :- (پَ + چِيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] چپې کول ، خولهٔ اغستل ، مُچې کول ، کُښلول ـ

**ــــ اخستل** :- (اص) چپې اخستل ، مچې کول ، کُښلول ـ

**ــــ کول** :- (اص) چپې کول ، کُښلول ، خولهٔ اغستل ، مچې کول ـ

**ــــ کېدل**:-(اص) خولهٔ اغستلے کېدل ، مچې کېدل ، کښلولے کېدل ـ

**پچې** :- (پَ + چې) [ پ ، اس ، مؤ ، ج ] د ګډې بېزې وغېره بول ، د بنیادم اوچ د غونډارو په شان بول ـ

**ــــ ایستل**:-(ب ، خ) اص ـ غُل ایستل ، لرول ، پړول ، په کربنه ویستل ـ

**ــــ کول** :- (اص) (۱) د ګډې بېزې وغېره بول (۲) پړه منل ، په څهٔ کار کښې پاتې راتلل (۳) د ماشومانو په پچو لوبې کول ـ

**د پچو سره** :- (اص) (۱) چې پچې په کښې ګډې وي (۲) ګنده ، خراب ـ

لکه : بزې پئی به راکړې خو د پچو سره (۳) په زور ، په تاؤ لاس ـ

**پُچې** :- (پُ + چْ + يْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د خربوزو او بادرنګ تخم ، د ګل مرۍ ـ

**پچپچُونکے** :- (پَ + چې + چُوْ + نْ + کَے) [ اف ک پ (قاموس) اس ، مذ] د ماشومانو یوه لوبه ـ

**پچېدل** :- (پْ + چې + دْ + لْ) [ پ (ګن) مص لا ] (۱) پخېدل (۲) د کار سستېدل (۳) یرېدل ـ

**پچېدنه** :- (پْ + چې + دْ + نَه) [ پ (ګن) حمص ] پچېدهٔ (۱) پخېدنه (۲) د کار سستېدنه (۳) یرېدنه ـ

**پچېدُونکے** :- (پْ + چې + دُوْ + نْ + کَے) [ پ (ګن) مف ، مذ ، وا ، ج: پچېدُونکي ] پخېدونکے ـ

**پچېدهٔ** :- (پْ + چې + دهٔ) [ پ (ګن) حمص ] و ــــ پچېدنه ـ

**پچیز** :- (پْ + چِيْ + زْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] د بېډو یا شپشتو لوبه ، اړوُونکے ـ

**پخ** :- (پْ + ښْ) [ پ ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا ، پخه و ج : پخې) ] (۱) پېچ چې تېرهٔ نهٔ وي ـ لکه تُوره ، لور ، چاړهٔ ، رمبے وغېره (۲) هغه سړے چې کار کښې مړنے نهٔ وي ـ سُست ـ

کـه ئې اولې د خـاطـر کړې زما غوخې
ستا د سترګو توري هم کړلے خداے پخې خوشحال خان

**د خولې پخ** :- (اص) هغه سړے چې ډېرې خبرې نهٔ شي کولے ـ

**د ژبې پخ** :- (اص) هغه سړے چې د چا په مخ کښې سخته یا پرېکړې خبره نهٔ شي کولے ـ

**د کار پخ** :- (اص) چې کار په ښهٔ شان نهٔ شي کولے ، چې په کار کښې مړنے نهٔ وي په کار کښې سُست ، چې د زړهٔ نه کار نهٔ کوي ـ

**د لاسو پخ** :- (اص) هغه سړے چې زر زر لاس نهٔ شي خوځولے ، کار کښې سُست

**پخانے** :- (پ + ښا + نْ + ړَے یا پْ + ښا + نْ + ړْے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پخانې ] کمیسکے ، پټُوسکے ، ډېر لږ ، ډېر وړوکے ، پخنے ، خڅُوزے ـ

**پختوب** :- (پْ + ښْ + تو + بْ) [ پ ، حمص ] پختیا ، پخوالے ، پخېدهٔ ، چې تېرهٔ والے نهٔ لري ـ

**پختیا** :- (پْ + تس + تْ + یا) [ پ ، حمص ] و ــــ پختوب ـ

**پخخه** :- (پَ + ښْ + خَه) [ پ (ب ، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج پخخې] پخسه ، هغه لمدې ختې چې د ګټو ایټو په ځاے دیوال ترې جوړولے شي ـ

**ــــ ویل** :- (ب ، خ) اص (۱) د لمدو ختو نه دېوال جوړول (۲) خبره مضبوطول ، د قصې بختین کول ـ

**پخنے** :- (پْ + تْ + سَ + نْ + ړَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پخنې] و - پخانے ـ

**پخوالے** :- (پْ + ښْ + وا + لَے) [ پ ، ص ، مذ ] و ــــ پختوب ـ

**پخول** :- (پْ + تْ + سَ + وْ + لْ) [ پ ، مص ، مت ] د تورې ، چړې ، لور رمبې وغېره اوزارو غلط استعمال د کبله تېرهٔ والے ختول ـ

**پخونګ** :- (پْ + تْ + سَ + وَ + نْ + ګْ) [اف :پ (قاموس) حمص] و - پخونه

**پخونه** :- (پَ + تْ + سَ + وْ + نَه) [ پ ، حمص] پخونګ ، د تېرهٔ مخي څیز تېرهٔ والے یا تېز والے ختمونه ـ

**پخوُونکے** :-(پْ + تْ + سَ + وُوْ + نْ + کَے) [ پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پخوُونکي ] د تېرهٔ مخي څیز تېرهٔ والے یا تېزوالے ختموونکے ـ

**پخه** :- (پْ + تْ + سَه) [ پ ، ، مؤ ، وا ، ج : پخې د پخ مؤنث (۲) بخۍ ، ګنډون ، بخیه ـ

**په پخه چاړهٔ حلالول** :-(مح) (۱) څهٔ څیز په داسې چاړهٔ حلالول چې تېرهٔ نهٔ وي ـ په پخه حلالول (۲) په ډېر ظلم او ناترسۍ حلالول ـ (۳) چا باندې زور زیاتے کول ، (۴) چا باندې څهٔ څیز ډېر ګران خرڅول ـ

**په پخه حلالول** :- (اص) و ـــ په پخه چاړهٔ حلالول ـ

**په پخو کول** :- (سو) اص (۱) د چاړې په پخ اړخ کار کول (۲) په چا ظلم کول

**پخه** :- (پَ + تْ + سَه یا پِ + تْ + سَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ وا ، ج : پخې] پیخه ، پیخکۍ ، د څادر یا لوپټې پیسکے ، لمن ـ

**پخۍ** :- (پْ + تْ + سَ + یَۍ) [پ (روسي قاموس) اس ، مؤ] د لوپټې یا څادر پیسکے ، پیخه ، پخه ، پیخکۍ ـ

**پخېدل** :- (پْ + تْ + سې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] (۱) پڅېدل ، د تېرهٔ اوزار لکه توري چړې ، لور ، رمبې وغېره تېرهٔوالے نهٔ پاتې کېدل (۲) په کار کښې سستېدل ـ (۳) د خبرې مناسب جواب کولو کښې پاتې راتلل ، (۴) تُوره نهٔ کول ـ

**پخېدنګ** :- (پْ+تْ+سې+ دْ+نْ + ګْ) [اف:پ (قاموس)حمص] و - پخېدنه

**پخېدنه** :- (پْ + تْ + سې + دْ + نه) [پ، حمص] پخېدهٔ ، پخېدنګ تېرهٔ والے ختمېدنه ـ

**پخېدونکے** :- (پْ + تْ + سې + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پخېدونکي] تېرهٔ والے ختمېدونکے ، پخېدونے ـ

**پخېدونے** :- (پْ + تْ + سې + دُوْ + نَے) [پ ، مف ، مذ ، و ،ج : پخېدُوني] و ـــ پخېدونکے ـ

**پخېدهٔ** :- (پَ + تْ + سې + دَهٔ) [پ، حمص] و ـــ پخېدنه ـ

**پخیر** :- (پْ + تْ + سِيْ + رْ) [پ ، ص] په خیر ، په شان ، په رنګ ، غوندې ، په مثال ـ

**پخ** :- (پْ + خْ) [پ ، اسم ، صوت] (۱) د ماشومانو ویره ولو اواز ـ (۲) د حملې کولو په وخت د پیشو اواز (۳) د خندا او ساه راویستو په وخت د پوزې نه راوتونکے اواز (۴) پمن والے ، پو نوالے ـ

**ـــــ وهل** :- (اص) (۱) هغه خندا کول چې څهٔ وخت ساه بهر ته را وځي چې د پخ په شان اواز ترې وځي (۲) د ماشومانو ویرولو دپاره ناڅاپه د پخ اواز کول ـ

**پخ** :- (پُ + خْ)[پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پخونه (مؤ ، وا: پخه ، ج : پخې) ] تېزندۍ ، لُومه ـ

ډېـر بنـدي ئې د زلفینو پـــه کمند شول
کله وي چې دوي به خلاص شي له دې پخ خوشحال

**پُخ** :- (پُ + خْ) [پ ، اس ، مذ] پخت ، پښت ، پُشت ، نسل ـ

و هر چا سره چې کښېني ورته رام شي
نـــور وغـــاړې تـه تیار که لُومه پخه خوشحال

**پخاتې** :- (پ + خا + تِيْ) [پ ، اس ، مؤ] مېښاوي ، د ګډو هغه اوچې پچې چې وړۍ سره نښتې وي او زانګې ـ

**پخاولے** :- (پْ + خا + وَ+ لے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پخاولي ، مؤ : وا : پخاولۍ ] پخوُونکې ، بټیارے ، اشپز، لانګري

**پخ پخ** :- (پْ + خْ + پْ + خْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] د ماشوانو په ژبه ګډه

**پخ پخ** :- (پْ + خْ + پْ + خْ) [پ ، اس ،صوت] (۱) د نرۍ خندا اواز، د دوؤ یا د زیاتو کسانو خپلو کښې خبرې کول او ورسره نرۍ نرۍ خندا کول ، لکه چې وائي : هلکه څهٔ پخ پخ کوئ (۲) د پیشو خورهار ، د پیشو خُر خُر کول ـ

**پخپله** :- (پَ + خْ + پْ + لَه) [پ کلمه ] (۱) پخپله خوښه ، د خپلې اندې ، په خپلې رضا ، په خپلاه مرضي ـ(۲) پخپل لاس ، سترګو وغېره (۳) خپل پخپله ، لکه قلم پخپله لیکل نهٔ کوي (۴) پخپل ځان ـ

د رخسار ته د خوبانو چې ځیر ګورم
غـــورزوم پخپله خپل صورت بلا ته مرزالله خان

که دې نهٔ وي نېک عمل پخپله کړے
غـــــره مــــه شه په عمل د پلار او مور معزالله خان

کلـه کله چې مې وزوري پخپله
دي د کښلي تلخ وئیل شکر زما مصري خان

**ـــــ کار کول** :-(اص) (۱) پخپل لاس کار کول (۲) په خپله مرضۍ کار کول

**پخت** :- (پْ + خْ + تْ) [پ ، اس ، مذ] و ـــ پُخ

**پختکه** :- (پْ + خْ + تَ + کَه) ] اف : پ (قاموس) اس ،وا ، ج : پختکې] ګوګوشتکه ، کوړکوړۍ ، ببغه ، ببوغه ـ

**پختګان** :- (پُ + خْ + تا + ګا+ نْ) [فا ، اس ، ج : وا ] پُخته] پخته کار ، پاخهٔ خلک ، هوښیار ، تجربه کار ، دانایان ـ

پختـــه کلــه دي چې لاف د پختګۍ کا
پختګان دي په دې خم کښې خام د ستا رحمٰن بابا

**پختګي** :- (پُ+خْ+تَ+ګِيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پختګۍ] (۱) پوخوالے ، کلکوالے ، مضبوطوالے ، (۲) تجربه کاري ، هوښیاري ـ

له خامۍ جوش و خروش خیژي له دېګه
دي لـــــه خپـلې پختګۍ پختګان چپ عبدالحمید

**پختن** :- (پْ + خْ + تَ +نْ) [پ ، مص] (۱) پختن ، پخلے ، پخول ، د پخولو کار (۲) د خبرې پوخوالے ـ

چې نمک د عمل ګډ ورسره نهٔ وي
بې مــزې بــه وي هغه پختن د عمر میا نعیم

**پخته** :- (پُ + خْ + تَه) [فا ، ص] (۱) پوخ ، پوخ شوے چې کچه نهٔ وي (۲) کلک ، مضبوط (۳) پائیدار ، (۴) هوښیار ، تجربه کار کامل ـ

محبت چې پخپل درس کښېني پخته
پــــه تنــدي دا ستا د مــاته که تخته شاه و ګدا

**پخته اندېش** :- (پخته + اِ + نْ + دې = شْ) [فا ، اس ، ص ،مذ] د پوخ فکر خاوند ، اوښیار ، پوهه ـ

مرد خام اندېش به وي پخته اندېش نهٔ وي
پـــــه کـار تـلوار کـــه طـول اصل نهٔ کا مصري خان

**پخته دان** :- (پخته دا + نْ) [فا ، اس ، ص ، مذ] اوښیار ، پوهه ، د پاخهٔ ذهن خاوند ـ

یـــار مې پخته دان خـو زما په حال پوهېږي
واړه مې خامي ده چې سوز نما یم لکه شمع مصري خان

**پخته کا ر** :- (پخته + کا + رْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پخته کاران ( مؤ ، وا : پخته کاره ، ج : پخته کارې) ] هوښیار ، تجربه کار ، ازموده کار ، جهان دیده ، دانا ـ

چې د فـــکر بـدرقه ورسره نهٔ وي
پخته کار به په لار نهٔ اخلي یو ګام خوشحال

**پخته کاري** :- (پُخته + کا + رِيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پخته کارۍ] په کار کښې پوخ والے ، تجربه ، پختګي (۲) مضبوطه او کلکه کاریګري ، غوره کاریګري ـ

**پخـــرے** :- (پَ + خْ + رَے) [پ (ب، خ) اس ، مــذ ، وا ، ج : پخـري] د لوښي ټوټه ، ټکړه ، کودرے ، خپرے ـ

**پخړي پخړي کول** :- (پ، خ) اص ـ ټوټې ټوټې کول ، ټکړې ټکړې کول ، کودري کودري کول۔

**پخـري** :- (پ + خْ + رِيْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ] د قنـدهاري انګورو یو قسم

**پخـړن** :- (پ + خْ + ړ + نْ) [ پ ، ص ، مـذ (مـؤ : پخړنـه ، ج : پخړنـې ] چخړن ، چخړک ، چیخن ، چرخن ، چوخړن ، هغـه کس چې سترګو کښې ئې چیخې وي ـ د چوپنو سترګو خاوند ۔

**پخړي** :- (پ + خْ + ړِيْ) [ پ ، اس ، مؤ ] چیخې ، چخړې۔

**پخساک** :- (پَ + خْ + سا + کْ) [ پ ، اس ، مذ ] پخشاک ، غم ، پرېشاني ، فکر ، کړاک ، زړهٔ خوړل۔

سینه مې ستړې لـــه ډېـــره غـــمـــه ده
پخساک مې ډېر دے ښادي مې کمه ده  عبدالعظیم بابا

**ـــــ کول** :- (اص) غم کول ، فکر کول ، زړهٔ خوړل۔

**پـه پخساک اختـه کېدل** :- (اص) پـه غم اختـه کېـدل ، پـه کړاک کښـې راګېرېدل ، زړهٔ خوړلے کېدل۔

**عمر پـه پخساک تېرېدل** :- (اص) عمر پـه پخساک کېدل ، عمر پـه غـم کښې تېرېدل ، ټُول ژُول کښې تېرېدل۔

**عمر په پخساک کېدل** :- (اص) و ـــ عمر په پخساک تېرېدل۔

**پخساکے** :- (پَ + خ + سا + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، فـا ع ، مذ ، وا ، ج : پخساکي ، (مؤ ، وا : پخساکې) ] غصه کوونکے ، قهرېدونکے ۔

**پخسر** :- (پَ + خْ + سَ + رْ) [ پ ، ص ، مذ ] ډېر ، په سخړو ، په دلو۔

پـــه پخسرو بـــه د هــر چـا کره پراتهٔ ؤ
که دا دُر مې درلېږ غوندي ارځان وے  خوشحال

**پخســله** :- (پْ + خْ + سْ + لَـه) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پخسلې ] پخه خښته ، پخه اېټه ، پخه سله۔

**پخسول** :- (پْ + خْ + سْ + وْ + لْ) [ پ ، مص مت ] پسخول ، څهٔ څیز چاته د طمعې پیدا کولو دپاره ښیل ، چې خواهش ئې پیدا شي او ورلـه ورکوي ئې نه ـ څهٔ څیز تـه زېرول ـ ماشومان وائي : پخسه پخسه چونوان چونوان ، چې یو ماشوم څخه څهٔ شے وي او بـل تـه ئې ښئ ۔ چې ګوره ما سره داسې شته او تا سره نشته۔

**پخسول** :- (پْ + خْ + س + و + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] پـه غصـه کول ، قهرول ، خفه کول ، پسخول۔

**پخسولے** :- (پَ + خْ + سْ + وْ + لَے) [ پ ، مف ، وا ، ج : پخسولي ، (مؤ : پخسولې) ] (۱) پسخولې ، په قهر کړے شوے ، خفه کړے شوے (۲) د څهٔ څیز د حاصلولو دپاره زهیر کړے شوے۔

**پخسونګ** :- (پَ + خْ + سْ + و + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـ پخسونه

**پخســونه** :- (پَ + خْ + سْ + وْ + نَـه) [ پ ، حمـص ] (۱) پسـخونه ، د څـهٔ څیز حاصلولو پسې زهیرونه ، چاتـه څهٔ څیز نیونه ، چې مینـه ئې ورته پیدا شي او بیا نهٔ ورکونه (۲) قهرونه ، غصه کونه ، خفه کونه۔

**پخســوُونکے** :- (پَ + خْ + سْ + وُوْ + نْ + کَـے) [ پ ، اس ، فــا ع ، وا ، ج: پخسوُونکي ] (۱) پسخوونکے ، د څهٔ څیز د حاصلولو دپـاره د بـل زهیروونکے (۲) قهروُونکے ، غصه کوُونکے ، ازاري۔

**پخســوے** :- (پَ + خْ + سْ + وے) [ اف : پ (قـاموس) مــذ ، وا ، ج : پخسوي ] پوخ شوے ، پوخ ، پخشوے۔

**پخســه** :- (پَ + خْ + سَـه) [ پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پخسـې ] (۱) پڅخه پسخه ، هغـه خمبیره شوې خټه چې دیوال تړې وهلے کېږي ۔ (۲) د خمبیره شوې خټې نـه جوړ شوي اوچ چمـان ، چې د دیوال د وهلو د خښتو په شان لګولے شي (۳) پخې شوې نرمې وریژې ، چې دانه وانه نهٔ وي ، چمبړ شوې۔

**پخسېدل** :- (پْ + خْ + سې + دْ + لْ) [ پ ، مـص لا ] (۱) پسـخېدل ، د څهٔ څیز د حاصلولو دپاره زهیرېدل ، د څهٔ کار د جوګه کېدو خواهش لرل  (۲) قهرېدل ، غصه کېدل ، خفه کېدل۔

و خوبانو ته زاهد هسې پسخېږي
لکـــه سوځي له مجلسه بله شمع  عبدالحمید

**پخسېدلے** :- (پَ + خْ + سې + دْ + لے) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پخسېدلي (مؤ : پخسېدلې) ] (۱) د څهٔ څیز د حاصلولو دپاره زهیر شوے ، پسخېدلے (۲) قهرېدلے ، په غصه شوے ، خفه شوے

**پخسېدنګ** :- (پ + خْ + + سې + دَ + نْ + ګ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــ پخسېدنه۔

**پخسېدنه** :- (پَ + خْ + سې + دْ + نَه) [ پ ، حمص ] پخسېدهٔ ، پخسېدنګ ، (۱) د څـهٔ څیـز حاصـلولو دپـاره زهیرېدنـه ـ (۲) قهرېدنـه ، غصـه کېدنه ، خفه کېدنه۔

**پخسېدونکے** :- (پَ + خْ + سې + دُوْ + نْ + کے) [ پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پخسـېدونکي ] (۱) د څهٔ څیـز د حاصـلولو دپاره زهیـردونکے ، پسخېدونکے (۲) قهرېدونکے ، غصه کېدونکے خفه کېدونکے ۔

**پخسېدهٔ** :- (پَ + خْ + سې + دهٔ) [ پ ، حمص ] و ـــ پخسېدنه۔

**پخسیه** :- (پَ + خْ + سِ + یَه) [ اف : پ (قاموس) ص ] مایع او اوبجن څیز ، خوړین څیز۔

**پخشاک** :- (پَ + خْ + شا + کْ) [ پ ، اس ، مذ ] و ـــ پخساک۔

**پخشو** :- (پَ + خْ + شو) [ پ ، ص ] ارام۔

کــــه د غشي پـــه وېښتهٔ ســره خوږېږي
زهٔ چې ستا په تیر زخمي شم ، پخشور کړ  خوشحال خان

**پخشوے** :- (پَ + خْ + شْ + وَے) [ پ، ص ، مذ ] و ـــ پخسوے۔

**پُخک** :- (پُ + خَ + کْ) [ اف : په (قاموس) اس ، مذ ] ګډ (د ماشومانو په ژبه۔

**پخکـړے** :- (پَ + خْ + کْ + ړے) [پ،اس،مذ،و، ج : پخکړي] (۱) پـوخ کـړے شـوے ، پـوخ (۲) اینګـولے ، بـوړ، لاوړ ، لمـده بـل ، سـالڼ ، ترکاري۔

**پخګنے** :- (پَ + خْ + کُ + نَے) [ پ (سو) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پُخکني ] مشروټ ، ماشوم ، پخناټې۔

**پخکي** :- (پُ + خْ + کِيْ) [ اف :پ (قاموس) اس ] د ماشومانو د ویرولو غږ۔

**ـــــ کول** :- (اف) اص ـ ماشومان ویرول۔

**پخـل** :- (پْ + خْ + لْ) [ اف : پ (قـاموس) مـص مت ] د شـولو کرلـو دپـاره اوبهٔ شوې زمکه ، د غویانو په ګرخولو تیارول۔

**پخل** :- (پْ + خَ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مذ ] د غوبـل دپاره درمند کښـې چار چاپېره ګېډې خورول۔

**پخـلا** :- (پُ + خْ + لا یـا پَ + خْ + لا) [ پ ، ص ] د مـرور ضـد ، پخـولاد مرورتیا یا خفګان نه پس رضا شوے یا په دلاسه شوے ، رضا ، خوشحاله ـ ، په صلحه شوے۔

لابه کله محنت زما له خوبه پاڅي
چې لـه ما مرور تلے یار پخلا شي  معزالله خان

**ـــــ کول** :- (مص مت) د مرورتیا نـه پس رضا کول ، د مرور سړي طبع تسله کول، خفګان لرې کول۔

**ـــــ کېدل** :- (مص لا) د مرورتیـا نـه پس رضـا کېـدل ، دلاسـه کېـدل ،

خوشحاله کېدل.

**پخلاتوب** :- (پخلا + تو +ب) [پ ، اس ، مذ] صلحه ، روغه ، رضامندي ، دلاسه توب ، پخلا والی.

**پخلا والی** :- (پخلا + وا + لَی) [پ ، اس، مذ] و ــ پخلا توب.

**پخلا وے** :- (پَ + خْ + لا+ وَ ے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پخلاوي] پخاولے ، پخه وُنکے ، باورچي ، اشپز.

**پخلن** :- (پَ + خْ + لَ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] اخلے پخلے ، پختن پختین ، انډی کونډی ، پخلنګ.

**پخلنځ** :- (پَ + نْ + لَ + نْ + ځْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پخلنځونه] پخلي ځاے ، پخلنځے.

**پخلنګ** :- (پَ + خْ + لَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و - پخلن.

شاه مزريه چې پر تور ځنګل د کور دے
دا تــــارو دي ماتــــه دے راوړے
شـاه مزريـه د تـارو پخلنګ پـه اور دے

**پخلوځے** :- (پَ + خْ + لو + دْزَ ے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پخلوځي] و ــ پخلنځ.

**پخله** :- (پْ + خْ + لـه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پخلې] د غنمو د ټولولو نه پس د هغې د وړو نه پاتې شوې پاڼې يا خل پخل.

**پخلي** :- (پْ + خْ + لِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] چخه ، چخړ ، د سترګې چخې.

**پخلے** :- (پَ + خْ + لَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پخلي] (۱) څۀ څيز پخول ، پخونه ، اخلے پخلے ، انډي کونډي ، (۲) د خبرې کلکول ، پوخوالے.

ــــ **کول** :- (مص تر) (۱) څۀ څيز پخول ، انډي کونډي کول (۲) چا سره څۀ خبره پخول ، چا نه قول او اقرار اخستل.

ــــ **کېدل** :- (مص تر) (۱) د څۀ څيز پخېدل ، اخلے پخلے کېدل ، انډي کونډي کېدل (۲) د يوې خبرې پخېدل ، قول اقرار کېدل

**پخلې** :- (پُ + خْ + لَے) [پ ، اس ، مؤ ، ج : پخلي] پُوخلے ،د ماشومانو د ټوخي مرض ، ټوخلې ، ټوخے ، پخوله.

**توره پخلې** :- (اص) هغه پوخلې چې ماشومان پکښې د ټوخي د زوره بانګونه وائي .بانګي ټوخے .توره ټوخوله ، توره غاړه ، لويه ټوخي ، پخوله.

**پخليت** :- (پَ + خْ + لِيْ + تْ) [پ (سو) ص] د عمر پوخوالے.

**پخلي ځاے** :- (پَ + خْ + لِيْ + دْزا + ئے) [پ ، اس ، مذ] و ـ پخلنځ.

**پخليځے** :- (پَ + خْ + لِيْ + دْزے) [پ ، اس ، مذ] و ـ پخلنځ.

**پخن** :- (پْ + خْ + نْ) [پ ، اس ، مذ (مؤ ، ا: پخنه ، ج : پخنې)] (۱) هغه سړے چې په سر کښې ئې پخې وي .(۲) پشم دار ، پشم واله، (۳) بنې يا پخې لرونکے.

**پخن** :- (پَ + خَ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] جماد ، هغه څيزونه چې جماداتو کښې شمېر وي .لکه کاڼي ګټې اوسپنه.

که بدرنګ دے که بد روئې دے
کـــه پخن کـــه ښۀ صورت دے سکندر خان

**پخناټے** :- (پ+ خْ + نا + ټَے) [پ (سو) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پخناټي (مؤ ، وا: پخناټې)] پخنې ، پوخناټي ، پوخنه ، پخنوکے ، پخګُنے ، مشروټ ماشوم.

**پخنــدے** :- (پْ + خْ + نْ + دَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پخنـدي] پښونډې ، ځولنې (۱) د پښو تړلو کړې وغېره (۲) هغه کړې يا پائيله چې د منښتې په طور يا د بد نظر نه د ساتلو دپاره د ماشومانو پښو کښې اچولے شي.

**پخنے** :- (پ + خَ + نْ + ړَے) [پ (سو) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: پخنې] و ــ پخناټے.

**پخنوکې** :- (پ + خْ + نُو + کَے) [پ (سو) اس صو ، مذ ، وا ، ج: پخنُونکي] و ــ پخناټے.

**پخنه** :- (پْ + خَ + نَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] غوربړه ، يو مشهور بوټے.

**پخـوا** :- (پْ + خـوا) [ظـرف] (۱) وړانـدې ، وړومـبے ، اول ، اګـو ، مخکښې ، څنډنه زمانه پخوو ، (۲) په خوا کښې ، نزدې.

چې د مرګ سختې خوارئ دا ستا پخوا دي
اے رحمـــانـــه ولې نـــۀ مـــرې لا پـخوا رحمٰن بابا

که لېږ درشي پخوا اُميد د خبر کړه
څړه شر دے خوا پخوا مه شه ناکس مصري خان

ــــ **پخوا** :- (اص) په وخته زمانه کښې ، په تېرو وختونو کښې ، پـه زړه زمانه کښې ، ډېر پخوا ، څنډنه زمانه کښې.

ــــ **تر پخوا** :- (اص) ډېر زيات پخوا ، ډېره موده وړاندې.

ــــ **راسې** :- (اص) وختونو يا زمانونه ، د ډېر وخته راسې ، د ډېرې مودې راسې ، د ډېرې مودې نه.

ــــ **رائسې** :- (اص) و ــــ پخوا راسې.

**په پخوا زمانه** :- (اص) زړه زمانه کښې ، زړو وختونو کښې ، په تېر شوي وخت يا زمانه کښې ، په پخوانۍ زمانه کښې ، په تېر وختونو کښې

**پخوالے** :- (پْ + خْ + وا + لَے) [پ ، مذ] (۱) پخلے ، پوخ والے (۲)کلکوالے ، مضبوطوالے ، مضبوطيا.

**پخوانــے** :- (پْ + خـوا + نـے) [پ، ص ، مـذ ، وا ، ج : پخـواني ، (مـؤ: پخوانۍ)] د زړې زمانې ، د زوړ وخت ، زوړ ، قديمي ، اولنې د تېرو وختونو ، څنډن.

**پخوړ** :- (پْ + خو + ړْ) [پ ، اس ، مذ] ننبتېځنه ، نچوړ ، د څۀ څيز نه يستلې اوبۀ.

**پخوړول** :- (پْ + خو + ړَ + و + لْ) [پ ، مص مت] ننبتېځل ، نچوړول ، نځوړول ، د څۀ څيز نه په زور اوبۀ ويستل.

**پخول** :- (پَ + خَ + وْ + لْ) [پ ، مص مت] (۱) د خوراک څۀ کچه او اووم څيز په اور باندې دومره ساعت کښېښودل چې د خوراک قابل شي (۲) مضبوطول ، ټينګول ، (۳) قول يا وعده کره کول

ــــ **سړول** :- (اص) (۱) ګرمول يخول ، (۲) غصه کول او بيا دلاسه کول.

**پخولا** :- (پَ + خو + لا) [پ (روسي قاموس) ص] و ــ پخلا

**پخوله** :- (پْ + خْ + وَ + له) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـ پُخلے

**پخولے** :- (پْ + خَو + لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د پخولو کار يا عمل .پخون ، پخلے ، پختن ، پختين.

**پخون** :- (پْ + خُو + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـ پخولے

**پخوندے** :- (پْ + خْ + وَ + نْ + دَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پخوندي] (۱) پخندے ، د څاروو وغېره د پښو تړلو بند يا کړۍ (۲) د تنې کاج.

**پخونګ** :- (پْ + خْ + وْ + نْ + ګْ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـ پخونه

**پخوُنکے** :- (پْ + خُو + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، پخونکي] پخوونکے ، پخوُولے ، د پخولو کار کوونکے.

**پخونـه** :- (پْ + خْ + وْ + نَـه) [پ،حمص] (۱) پخونګ ،د پخولو کـار ،

خبره یا وعده تېنګونه.

**پخوو** :- (پَ + خوو) [ پ (ب ، خ ، ص ] و ـــ پخوا .

**پخوُونکے** :- (پ + خ + وُو + نْ + کَے) [ پ ، اس ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج : پخوُونکي ] (۱) د پخولو کار کوونکے ، اشپز ، باورچي ، بتیـارے ، پخوونے ، پخونکے (۲) خبره یا وعده تېنګوونکے .

**پخوُونے** :- (پ + خ + وُو + نَے) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پخوُوني ، ( مؤ ، وا : پخوُوني ) ] و ـــ پخوُونکے .

**پخه** :- (پ + خَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پخي ] (۱) هغـه سپین سپین بوس شان ، چې د ګنجې د سر نه رادورېږي ـ د خرئیلي شوي سر خشکي (۲) د خارښتي یا پمن اوښ د بدن خشکي (اف) (۳) د جوارو پک (۴) د ونو پاڼې (اف) (۵) د چرګ یا د مرغۍ بڼه

مــا چې لانا اهلو اخلاط کاوۀ پروسوم
سوم چې ګنده پخه راپورې د پخن شوه        علي خان

**په پخه کېدل** :- (اص) (۱) نوې نوې بڼې کول ، بڼې نیـول ، بڼې راټوکېدل (۲) شته من کېدل ، دولت لاس ته راتلل .

ـــ **وئیـل** :- (ب ، خ) اص ـ د اُلټې باکۍ یـا کـوز کتلـو دپاره پـه حلق کښې بڼه وهل .

**پخه** :- (پَ + خَه) [ پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : پخي (مذ ، پوخ ، ج : پاخۀ) ] (۱) پخه شوې ، تیـاره شوې (۲) کلکـه ، ټینګـه ، مضبـوط (۳) مشـروټه جینۍ ، د مور نه مشره (۴) زاړۀ ، عمر خوړلے .

د دلبـــــرو پــــــه ســـــتائینه
مــــا پخــــه کــــړه خپلــــه مینــــه
عشق تر ځوانه نۀ زوړ لاګه زر نسکور
پــــه پخــــه ونــــه لابنــۀ لګېږي اور        خوشحال

ـــ **خبره** :- (اص) (۱) پخه قیصه ، پوخ لوظ (۲) رښتوني خبره ، رښتیا خبره (۳) د کم عمر هلک چې د سړو په شان خبرې کوي .

ـــ **قیصه** :- (اص) و ـــ پخه خبره .

د رقیب لــــه ډېـــرې ډېـــرې رقیبۍ
په لړمون کښې مې اینه په غم پخه ده        معزالله خان

**پخه** :- (پَ + خَه) [ پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : پخي (مؤ ، پوخ ، ج : پاخۀ) ] سوې ، په غم دردېدلې .

**پخه** :- (پَ + خَه) [ پ ، اس ، معرفـه ] د پېښـور ښار پـه خوا کښې د یـو کلي نوم ـ چې عموماً ورته پخه غلام وائي .

**پخې** :- (پ + خې) [ پ ، اس مذ ، وا ، ج : پخي (مؤ ، وا : پخئے) ] خارشي ، پمن ، پُون ، هغه سړے چې د خارښت په مرض کښې اخته وي .

**پخې** :- (پ + خې) [ پ ، (ب، خ) اس ، مؤ ، ج ] د چائیو پتې یا پاڼې

ـــ **اچول** :- (ب ، ) اص ، د چائیو پتې اوبو ته اچول .

ـــ **خُټکول** :- (ب ، خ) اص ، (۱) د چـائیو پـاڼې پـه اوبـو کښـې جوشـول (۲) چائے پخول

**پخې** :- (پ + خې) [ پ ، اس ، مؤ ، ج ، وا : پخه ] بڼې .

ـــ **الوتل** :- (اص) بڼې غورزېدل ، یا پرېوتل .

ـــ **الوزول** :- (اص) بڼې په هوا کښې پورته کول .

ـــ **پخې کول** :- (ا ص) (۱) بڼې بڼې کول (۲) ټوټې ټوټې کول ، ذرې ذرې کول .

ـــ **دوړېدل** :- (اص) بڼې غورزېدل ، پخ رژېدل .

ـــ **دُوړول** :- (اص) بڼې غـورزول ، د نـوۀ بڼـو راټوکېـدو سـره زړې بڼې غورزول ، پخې رژول .

ـــ **رژول** :- (اص) و ـــ پخې دوړول .

ـــ **رژېدل** :- (اص) و ـــ پخې دُوړېدل .

ـــ **شوکول** :- (اص) بڼې لرې کول ، بڼې صفا کول ، د بڼو نه پاکول .

**پخے** :- (پُ + خَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پخي ، (مؤ ، وا : پُخۍ) ] (۱) هغه ماشوم چې نوے نوے په خبرو راشي (۲) ګډ (د ما شومانو په ژبه کښې

**پخېدل** :- (پَ + خې + دْ + لْ) [ پ ، مص لا ] (۱) دخوراک څۀ اُوم یـا کچـه څیز ته مختلفو طریقو ، دومره ساعت په اور کښېښودلے کېدل چې د خوراک جوګه شي ـ پوخ کېدل ، (۲) د میوې په اونه کښې په ښۀ شان د خوراک جوګه کېدل (۳) د دانې یا ننکۍ نَو یا پیپ دومره زیاتېدل چې ننکۍ چاؤدلو ته تیاره شي (۴) زړۀ مړېدل ، په زړۀ کښې کرکه یا نفرت پېدا کېدل ، ډېر زیات تنګېدل (۵) د شپې کافي وخت تېرېدل ، قـلاره شومه کېدل ، پـه دې معنٰی کښې شپې سره راځي لکه :- ''چې شپه پخه شوه ـ نو زۀ درغلم'' (۲) پـه عمر کښې زوړوالي ته رسېدل (۷) لوظ یا خبره کلکېدل ، (۸) په ملازمت کښې مستقل کېدل (۹) فصل ریبلو ته تیارېدل .

**پخېدل** :- (پَ + خې + دَ + لْ) [ پ (ب ، خ) مص لا ] پُخېدل ، خاندل .

**پُخېدل** :- (پُ + خې + دْ + لْ) [ پ ، مص لا ] (۱) پـخ پـخ کـول ، پـټ پـټ خاندل ، پخېدل (۲) (اف) په خټ خټ خاندل ، په برق برق خاندل .

**پخېدنګ** :- (پ + خې + دْ + نْ + ګْ) [اف ، پ (قاموس) حمص] و-پخېدنه

**پخېدنه** :- (پ + خې + دْ + نْ + ګْ) [ پ ، حمص ] (۱) پخېدنګ ، پخېدۀ ، پخته کېدنه ، پوخ کېدنه ، (۲) دمیوې په ونه کښې په ښۀ شان د خوراک جوګه کېدنه (۳) د دانې یا ننکۍ نَو کونه ـ (۴)په زړۀ کښې نفرت یا کرکه پېدا کېدنه (۵) قلاره ، شومه دم کېدنه (۲) پـه عمر کښې زوړوالي ته رسېدنه (۷) لوظ یا خبره کلکېدنه (۸) پـه ملازمـت کښې مستقل کېدنه (۹) فصل ریبلو ته تیارېدنه .

**پُخېدنه** :- (پُ + خې + دْ + نَه) [ پ ، حمص] (۱) پخ پخ کول ، (۲) د خندا اواز ، په خټ خټ خاندل ، برقا (اف) .

**پخېــدونکے** :- (پ + خــې + دُو + نْ + کَــے) [ پ ، مــف ، مــذ ، وا ، ج : پخېدونکي ] پخېدونے ، (۱) څۀ څیز په اور پوخ حالت ته رسېدونکے (۲) مېوه په اونه کښې د خوراک جوګه کېدونکې (۳) فصل ریبلـو تـه تیاربـدونکے (۴) نَـو کـوونکے ، دانـه یـا ننکـۍ (۵) زړۀ مړېـدونکے ، (۲) شومه دم کېدونکے ، قلاره شپه کېدونکے .

**پخېــدونکے** :- (پُ + خــې + دُو + نْ + کَــے) [پ ، اس ، فـاع ، مـذ وا ، ج: پخېدونکي] (۱) پخ پخ کوونکے ، پټ پټ خندېدونکے (۲) (اف) په خټ خټ خندېدونکے ، په برق برق خندېدونکے .

**پخېدونے** :- (پ + خې + دُو + نَے) [ پ مف ، مذ ، وا ، ج : پخېدوني] و ـــ پخېدونکے .

**پخېدۀ** :- (پ + خې + دَۀ) [ پ ، حمص] و ـــ پخېدنه.

**پخېر** :- (پ + خې + رْ) [ پ ، اس مر] په خېر ، په خېر خېریت ، په خېریت سره ـ روغ جوړ ، په خېر راغلے ، هر کله راشې ، ستړے مه شې .

**پخېـل** :- (پ + خــې + لْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ] پرخیـال ، د مـریض خولې کېدل، خوله راوستل ، پرخیل .

ـــ **کول** :- (اف) اص ـ د بیمار خولې کول ، پخېل کول ،

ـــ **ورکول** :- (اف) اص ، و ـــ پخېل کول.

**پخېل والے** :- (پخېـل + وا + لے) [ پ (روسي قـاموس) اس ، مذ] د خولې کېدو حالت ، خولې کېدنه ، خولې راتلنه .

**پدا** :- (پَ + دا) [پ ، کلمه] په دا ، پردا ، په دا خبره ، په دا وجه۔

**پداسې** :- (پَ + دا + سې) [پ، کلمه] په داسې ، داسې ، داهسې ، په دا رنګ ، په دې چل۔

**پدر** :- (پِ + دَ + رْ) [فا ، اس ، مذ] پلار ، والد ، ابا۔

چې حېــدر د چــا پدروي د حېدر پسر حېدر وي

غضنفر دي شېرنروي نور ئې فېض وړي له شکاره مصري خان

**پدرانه** :- (پِ + دْ + را + نَه) [فا ، ص] د پلار په شان مينه يا سلوک

**پدر نشان** :- (پدر + نِ + شا + نْ) [فا ، تر ص] د پلار په شان ، د پلار په رنګ ، د پلار غوندې۔

چې مسجود ؤ ملکو ، ځاے پاس ؤ په فلک ؤ

خــلف د هغــه هسې خـليفــه پــدر نشان ؤ خوشحال خان

**پدري** :- (پِ + دْ + رِيْ) [فا ، اس] (۱) د پلار ، پلار سره تعلق لرونکے ، د پلار نه پاتې شوے جائيداد (۲) ابائي ، موروثي

**پدل** :- (پَ + دْ + لْ) [پ ، اس ، مذ] (۱) اثر (۲) عقل ، شعور

نۀ ئې قدر شته ، نۀ پدل

ډېر تر مورو تر جراد دي خوشحال

**ــــــ کول** :- (اص) اثر کول۔

**ــــــ ماتېدل** :- (اف) اص۔بې اثره کېدل ، اثر نۀ پاتې کېدل ، اثر تلل

**ــــــ ورک کول** :- (اف) اص۔بې اثره کول ، اثر ماتول۔

**ــــــ ورماتول** :- (اف) اص۔د خبرې سر کنبېښودل۔

**پدم** :- (پَ + دَ + مْ) [س ، اس مذ ، وا ، ج : پدمونه] (۱) د شمار يو عدد (۲) ښاپيرۍ ، پدم پري ، د عوامي قصو يو کردار (۳) د سوات په علاقه کښې د زنانهؤ يو نوم۔ (۴) يو قسم د زهرو نه ډک مار۔

چــې خــوړلے دے پــدم

تلـے نــۀ دے يــو قســم

**پدما** :- (پَ + دْ + ما) [بنګ ، اس ، مذ] په نمر ختيځ بنګال کښې د يو سيند نوم۔

**پــدمنۍ** :- (پَ + دْ + مَ + نَـی) [پ ، اس ، پـدمني ، اس ، مـؤ] (۱) ډېـره ښکلې ، (۲) د يوې راجنګنې نوم۔

**پدول** :- (پَ + دُوْ + لْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پـدولان (مؤ ، وا: پدولـه ، ج : پدولي)] چغلي مار ، چغل خور ، غماز ، چغلي خوړونکے۔

پــه عاشــق بانـدې غوغــا غمازبــدول کــا

چــې ګلونــه پربکــوي اغــزي قبــول کــا

زما راز مو په ملک خور کړ

اے زمــا اوښيــو پــدولو خوشحال

**پـدولي** :- (پَ + دُو + لِـيْ) [پ ، اس ، مـؤ] غمـازي ، چغلخـوري ، چغـل ماري ،

**پديد** :- (پَ + د + يْ + دْ) [فا ، ص] څرګند ، ښکاره ، ظاهر ، جوت

**پـډو** :- (پْ + ډُوْ) [پ ، اس ، مـؤ] د ګنجـۍ (مارغـۀ) يـو قسـم ، غرئيـزه لويه ګنجۍ ، مردار خورکه ، ګنجه ترغۍ۔

**پــډه** :- (پَ + ډَه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پــډې] د ببـد د قسم يو زړه وُنه ، وُله۔

**پډې** :- (پْ + ډې) [اس ، مذ ، وا ، ج : پډې (مؤ ، وا: پډۍ)] کجے ، چې پښې ئې کږې وي۔پيلے ، چُوډے۔

**پډنګ** :- (پُ + ډِ + نْ + ګْ) [انګ ، اس ، مذ] پوټين ، حلوه ، پټيين۔

**پر** :- (پْ + رْ) [اسم ، صوت ، مذ] (۱) د مرغۍ د الوتـو پـه وخت کښې د الوتو اواز ، بر (۲) د حرکت اواز۔

**ــــــ وهل** :- (اص) (۱) د مرغۍ الوتل ، (۲) زر په منډه تښتېدل۔

**پر** :- (پَ + رْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرونـه] (۱) وزر ، کوځر ، کونځر (۲) بڼه ، پخه۔

**ــــــ وهل يا وئيل** :- (اص) د الوتو په وخت کښې وزر يا کونځر رپول ، په وزرو الوتل۔

**پر** :- (پَ + رْ) [پ ، حرف] پرِ ، په ، بره ، دپاسه ، په باندې۔

ډېـر د بـاد سـوارۀ شـو ګـرو د يـار لـه غمـه

څـو بــه تــۀ هســې د بــادو پــه پرګرځــې

کــه بـلبل خــوشنوائے

ئې ودوي ته يو مُشت پر مصري خان

**ــــــ باندې** :- (اص) (۱) دپاسه ، په باندې ، له پاسه (۲) په ذمه

**ــــــ باندې کول** :- (اص) (۱) باړول ، دپاسه پر کښېښول ، لېږدول (۲) څۀ څيز په چا په زور ورتپل ، د چا د مرضۍ خلاف کار پرې کـول (۳) په چا پور يا قرض اړول (۴) د پخلي دپاره کټوۍ يا تبغنه په اور کښېښول۔ (۵) دپاسه کول۔

**ــــــ باندې کېدل** :- (اص) (۱) باربـدل ، دپاسه پرې کښېښـول ، لېږدېدل (۲) څۀ څيـز پـه چا پـه زور ورتـپلے کېدل (۳) پـه چا پـور يـا قـرض ور اړېـدل (۴) د پخلـي دپـاره کټـوۍ يـا تبغنـه پـه اور کښېښـودل (۵) د پاسه کېدل۔

**ــــــ بل مخ** :- (اص) (۱) په بل مخ ، په بل څنګ ، اړولے ، اپوټه ، پړمخ ، (۲) په بل لور ، په بل طرف۔

**ــــــ اوبو خيتې کښل** :- (اف) اص۔(۱) پـه اوبـو کربـښې راکښـل۔پـه اوبـو کښې کرښې جوړول ، (۲) نـۀ کېـدونکې کـار تـه لاس اچـول ، پـه ناشوني کار شروع کول۔

**ــــــ اور کړول** :- (اص) په جدايۍ کښې تکليف ورکول ، د هجر پـه اور سوځول۔

**ــــــ اور کړېـدل** :- (اص) د هجر پـه اور سـوځېدل ، پـه جـدايۍ کښـې تکليف رسېدل۔

**ــــــ اوره ګرځـول** :- (اص) د اوړې دپاسـه اوچت شـوړول ، د چـا زياتـه تابعداري او عزت کول۔

**ــــــ بل مخ اړول** :- (اص) اپوټه کول ، اړول ، اُلټه کول ، پړ مخ کول، په بل څنګ اړول۔

**ــــــ بل مخ کېدل** :- (اص) (۱) اړولے کېدل ، اپوټه کېدل ، اوړېدل ، په بـل څنګ کېدل (۲) (اف) د څېرې بدلېدل ، د څېرې پـه بـل رنګ کېدل (۳) بخت کوټه کېدل ، بد قسمته کېدل۔

**ــــــ بله خوا** :- (اص) (۱) اړولے ، اپوټـه ، اُلټـه ، پـه بـل خـوا ، (۲) پـه بـل طرف، په بل اړخ ، په بله ډډه ، په بل لور ، بل پلو۔

**ــــــ بله خوا تلل** :- (اص) په بل لور تلل ، په بل طرف تلل۔

**ــــــ بله خوا را اړول** :- (اص) (۱) په بل اړخ اړول ، پړمخې کول ، اپوټه کول (۲) په بل طرف راګرځول۔

**ــــــ بل هېر** :- (اص) په بل شان ، په بل رنګ ، په بل ډول۔

**ــــــ بل هېر کېدل**:-(اص) د څېرې وغېره بدلېدل ، په بل شان کېدل

**ــــــ بل هېر ګرځول** :- (اص) بدلول ، په بل رنګ کول ، تغير ورکول

**ــــــ ځاے کول** :- (اص) (۱) پـه ځـاے راوړل ، پورتـه کـول (۲) حکم منـل (۳) څوک په يو ځاے کښې ميشتول (۴) ختمـول ، مـړول (۵) د چا د پاتې کېدو ځاے ځائيګے معلومول۔

**ـــــ ځاے کېدل** :- (اص) (۱) خبره منلې کېدل ، د حکم تعمیل کېدل (۲) مېشتهٔ کېدل (۳) د سفر نه خپل ځاے ځائیگي ته واپس راتلل (۴) ځاے ځائیگې ټاکلې کېدل.

**ـــــ را اچول** :- (اص) پر راباندې کول ، په څهٔ څیز یا کار شروع کول ، ور اړمېدل.

**ـــــ ماتې** :- (اص) چې وزر ئې مات وي. مات وزرے.

لکه په لاس د هلکو کښېښوځي
هسې بې قدره پرماتے باز شوم      مصري خان

**ـــــ و بال** :- (اص) د مارغهٔ وزرې.

**د بادو په پر گرځېدل** :- (اص) د بادو په زور گرځېدل ، د بادو په وزر الوتل ، ډېر په فخر او ناز گرځېدل.

**د سُرخاب پَر** :- (اص) (۱) د سُرخاب مارغهٔ وزر (۲) څهٔ نایاب څیز ، هغه څیز چې په لاس راتلل ئې گران وي (۳) څهٔ دکمال خوبي یا هُنر.

**پر** :- (پَ + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د تگ په وخت کښې د ښنگر یو د یو بل سره جنگېدل (۲) د ژرندې د پل غابښونه.

**ـــــ ځنې وهل** :- (اص) د چا نه ډېر زیات ویرېدل یا ترسېدل ، چا نه ډېره ترهه کول. د چا نه په ځنگ گرځېدل.

**ـــــ وهل** :- (اص) د تگ یا زغل په وخت د ښنگرو جنگېدل.

**پرِ** :- (پْ + رِ) [پ ، حرف] پَر ، په باندې ، په چا باندې

چې ئې زړهٔ تر کاڼي سخت دے پرې مئین شوم
لاس دې نهٔ شي د سړي تر کاڼي لاندې      خوشحال

**ـــــ اړول** :- (اص) (۱) په چا ثابتول ، په چا تور پورې کول ، په چا زبادول (۲) په کنډۀ یا غر بل طرف ته بوتلل ، (۳) د بل په مقابله کښې زیاتي کار کول (۴) څهٔ څیز په چا په زور یا ناپوهی ورتپل.

**ـــــ ځاے کول** :- (اص) خامخا څهٔ څیز په چا ورتپل ، خامخا ورکول ، خامخا ځاے کول.

**ـــــ وراچول** :- (اص) (۱) پر ورغورزول ، په چا باندې ناڅاپي ور غورزول ، ناڅاپي حمله کول (۲) څوک د څهٔ کار دپاره لمسول.

**ـــــ ورغوزول** :- (اص) و ـــــ پرې اچول.

**پُر** :- (پُ + رْ) [فا ، حرف] (۱) ډک ، پُور (۲) (اف) پردے.

چې وگورم و تاته همگي په دُرو پُر ئې
چې خبرې اے خوشحاله له محبط هم غواص

**پُر اشوب** :- (پُر + ا+ شو + بْ) [فا ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا ، پُراشوبه ، ج : پُر اشوبې)] د فتنې نه ډک ، د فساد نه ډک.

دا دریاب د زمانې که پر اشوب دے
د لنگر نخښه ئې وینم په تمکین کښې      معزالله خان

**پراپېگنچي** :- (پْ + را + پې + گَ + نْ + چِيْ) [پ (سو) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پراپېگنچیان] پراپېگنډې ، پراپېگنډه باز.

**پراپېگنډه** :- (پْ + را + پې + گَ + نْ + ډَه) [انگ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پراپېگنډې] څهٔ څیز له د شهرت ورکولو عمل مشهورول ، د څهٔ په تعریف یا غندنې په حقله باقاعده تشهیر کول.

**پراپېگنډه باز** :- (پراپېگنډه + با+ زْ) [پ تر ، اس ص ، مذ ، وا ، ج : پراپېگنډه بازان ، (مؤ ، وا : پراپېگنډه بازه ، ج : پراپېگنډه بازې)] پراپېگنډې ، خبرې مشهوروونکے ، وران کار ، پراپېگنچي.

**پراپېگنډي** :- (پْ + را + پې + گَ + نْ + ډِيْ) [پ تر ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پراپېگنډیان] و ـــــ پراپېگنډه باز.

**پرات** :- (پْ + را + تْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پراتونه] په لَوْ کښې هره پره ، چې لوگرے ئې په مخکښې بیائي.

**پراته** :- (پْ + را + تَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پراتې] ملاسته ، څملستې ، څملاستلې ، غزېدلې.

عاشقي ځینې په گور کړل
څوک پراتهٔ دي په زگروا      خوشحال

**پراته** :- (پْ + را + تَه) [پ ، اس ، ج ، وا : پروت (مؤ : پرته ، ج : پرتې)] (۱) ملاست ، څملاستلي ، غزېدلي (۲) ایښې شوي ، کښېښولي شوي (۳) بې کاره ، سُست ، ناړامه.

**پراته** :- (پْ + را + تَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پرتې] فضول ، عبث ، بکواس ، کاواکې.

**په پراته تلل** :-(اص) فضول تلل ، عبث تلل ، بربادېدل ، بې بُوده کېدل.

**پراتیک** :- (پْ+ را + تي + کْ) [پ (روسي قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پراتیکونه] پرېکټس ، مشق ، پراتیس.

**پراټېسټنټ** :- (پْ + را + ټِ + سْ + ټِ + نْ + ټْ) [انگ ، اس ، مذ] د عیسایانو په دوو لویو فرقو کښې یوه فرقه ، چې پوپ نهٔ مني ، بلې فرقې ته چې کومه پوپ مني رومن کیتهولک وائي.

**پراټه** :- (پ + را + ټَه) [پ ، اس ، مؤ ، ج : پراټې] (۱) یو خاص قسم غوړه ډوډۍ ، چې د وړو وړو پیړو نه جوړه شوې وي. چې ماته شي نو پاپړکي پاپړکي شي. او ترمې ترمې ځي.

که یوه ډوډۍ پخه په بازار پیرم
پتیر نان و ماته گران تر پراټه شي      ملامست زمند

**ـــــ اچول** :- (اص) پراټه پخول.

**ـــــ جوړول**:- (اص) (۱) د پراټې پخولو دپاره پېړه تیارول ، (۲) پراټه کول ، په وهلو خمبیره کول ، د بوسو سخې جوړول ، پلنه ول ، خوشتول.

**ـــــ جوړېدل** :- (اص) (۱) پراټه پخېدلو دپاره پېړه تیارېدل (۲) پراټه کېدل ، په وهلو خمبیره کېدل ، د بوسو سخې جوړېدل.

**ـــــ کول** :- (اص) و ـــــ پراټه جوړول (۲).

**ـــــ کېدل** :- (اص) و ـــــ پراټه جوړېدل (۲).

**پراټې خوړل** :- (اص) د ماشومانو یوه لوبه.

**پراجېکټ** :- (پْ + را + جې + کْ +ټ) [انگ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پراجېکټونه] منصوبه ، خاکه ، تجویز.

**پراجېکټر** :- (پْ + را + جې + کْ + ټَ + رْ) [انگ] پراژیکټور ، منصوبه جوړوُونکے.

**پراچه** :- (پْ + را + چَه) [پ ، اُر ، پرائچه ، مذ ، وا ، ج: پراچه گان ، (مؤ : پراچگۍ/ پراچگنه ، ج : پراچگانې)] (۱) سوداگر ، تجارت پیشه ، پرېچه ، پرانچه (۲) کرایه کش ، هغه خلق چې په کرایه باندې مال د یو ځاے نه بل ځاے ته وړي (۳) هغه سړے چې پلار نې ئې د هندو مذهب نه اسلام ته راوړېدلے وي. شېخ (۴) بزاز ، د ټوکو دکاندار (۵) بې لحاظه ، بې مخ ملاحظې.

**پراچگنه** :- (پَ + را + چْ + گَ + نَه) [پ (ب ، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج: پراچگنې] د پراچه مؤنث ، پراچگۍ.

**پراخ** :- (پْ + را + خْ) [پ ، فا : فراخ ، ص ، مذ] مؤ ، وا: پراخه ، ج: پراخې)] ارت ، ارت بېرت ، پلن ، کشاده ، ویړ.

**پراختوب** :- (پْ + را + خْ + تو + بْ) [پ ، اس ، مذ] (۱) پراختیا ، پراخوالے ، ارت والے ، پلن والے ، کشادگي (۲) ډېر والے ، زیاتوالے ، (۳) خوشحالي ، شته مندي ، ابادي.

**پراختیا** :- (پْ + را + خْ + تْ + یا) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پراختیاگانې]

و ـــ پراختوب.

**پراخ والے** :- (پ + را + خ + وا + لَے) [پ ، اس ، مذ] و ـ پراختوب

**پراخول** :- (پْ + را + خَ +وَ + لْ) [پ، مص ، مت] (۱) ارتـه ول ، پلنـه ول ، کشاده کول (۲) ډېره ول ، زیاتول.

**پراخونګ** :- (پْ + را + خَ + وْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص ]و ـــ پراخونه.

**پراخونه** :- (پْ + را + خَ + وْ + نَه) [پ ، حمص ] (۱) پراخونګ ، ارتونـه ، پلنونه کشاده کونه ، (۲) زیاتونه ، ډېره ونه.

**پراخوُونکے** :- (پْ + را + خَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس فـا ع ، مذ ، وا ، ج : پراخــوُونکي ] (۱) ارتــوُونکے ، پلنــوُونکے ، کشــاده کــوونکے ، (۲) زیاتوونکے ډېره وونکې ، بس بسیار کوونکے.

**پراخي** :- (پْ + را + خِيْ) [پ ، اس ، مؤ] (۱) ارتوالے ، پلنوالے (۲) ډېر والے ، زیاتوالے.

**پراخېدل** :- (پْ + را + خې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] (۱) ارتېدل ، پلنېدل ، کشاده کېدل (۲) زیاتېدل ، ډېرېدل.

**پراخېدنګ** :-(پ + را + خې + دْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ پراخېدنه.

**پراخېدنــه** :- (پْ + را + خـې + دْ + نَـه) [پ ، حمـص ] (۱) پراخېـدنګ پراخېدۀ ، پلنېدنه ، ویړېدنه ، ارتېدنه ، (۲) زیاتېدنه ، ډېرېدنه.

**پراخېدونکے** :- (پْ + را + خې + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پراخېـدونکي (مـؤ ، وا : پراخېـدونکې) ] (۱) کشـاده کېـدونکے ، پلنېـدونکے، ارتېـدونکے ، (۲) پربوانـه کېـدونکے ، بـس بسـیار کېدونکے ، ډېرېدونکے ، زیاتېدونکے.

**پراخېدۀ** :- (پْ + را + خې + دَۀ) [پ ، حمص] و ـ پراخېدنه.

**پــراډه** :- (پ+ را + ډۀ) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پــراډې] (۱) تســمه ، (۲) خوشې خبره ، کاواکـه خبره ، عبث خبره ، (۳) د هـر څیـز یـوه اوږده ټکړه ، پارِه ، تراړه.

**پـرار** :- (پْ + را +رْ) [پ ، فـا : فرار ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پراریـان ، (مؤ ، وا : پراره، ج : پرارې) ] مفرور ، مرغوړ ، فراري ، پراري ، د قـانون نه تښتېدلے.

**پرار**:-(پْ+ را + رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرارونه] پرهار، زخم، پرهر

**پـرار پاڼه** :- (پْ + را + رْ + پـا+ ڼـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج: پرار پاڼې] پرهار پاڼه ، بار تنګ.

**پرارتوب** :- (پْ+را+رْ + تو + بْ) [پ ، اس ، ص ، ] پرارتیـا ، فرارتـوب ، پراري پرار والے ، مفرورتیا ، مرغوړتوب ، د قانون نه تېښته.

**پرارتیا** :- (پْ + را + رْ + تْ + یا ) [پ ، اس ، ص، مؤ] و ـ پرارتوب

**پرارژلــے** :- (پْ + را + رْ + ژْ + لَــے) [پ ، ص ، مــذ ، وا ، ج : پرارژلــي] پرهارژلے ، زخمي ، غوڅ ، ژوبل ، ژوبلے.

روغ عالم خندا خوشي هوا هوس کا
پـــرهار ژلے په غمونو کښې نړېږي خوشحال

**پرار والے** :- (پْ + را + رْ + وا + لَے) [پ ، اس ، ص] و ـــ پرارتوب.

**پرارول** :- (پْ + را + رَ + وْ + لْ) [پ ، مص ، مت] (۱) تښتـتول ، زغلـول ، فرارول (۲) جلا کول ، جدا کول ، بېلول.

**پرارونـه** :- (پْ+ را + رَ + وْ + نَـه) [پ ، حمـص] (۱) فرارونـه ، تښتــونه زغلونه (۲) جلا کونه ، جدا کونه ، بېلونه.

**پــراري** :- (پْ + را + رِيْ) [پ ، اس ، مــذ ، وا ، ج : پراریــان (مـؤ ، وا ، پرارنه ، ج : پرارنې) ] تښتېدلے ، فرار شوے ، خصوصاً هغه سړے چې د څۀ جرم وغېره کولو نـه پس اوتښتـي او نیـول نۀ ورکوي ، مفرور ، مجرم.

**پرارېدل** :- (پ + را + رِې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] تښتـېدلے ، فرارېدل ، څۀ جرم کولو نه پس د پولیس نه تښتېدل.

**پرارېدنه** :- (پْ + را + رِې + دْ + نَه) [پ ، حمص] تښتېدنه ، فـرار کېدنـه ، د څۀ جرم کولو نه پس د پولیس نه تښتېدنه.

**پـراز** :- (پْ + را + زْ) [اف : پ (قـاموس) حرف تشبیهـ] (۱) د "پـه راز" مخفف ، راز ، پـه شـان ، پـه رنګ ، غونـدې (۲) د "فـراز" مفغـن ، اوچتوالے ، لوړوالے ، بلندي ، هسکوالے.

**پرازیتولوجي** :- (پْ + را + زِيْ + تو + لـو + جي) [پ (روسـي قـاموس) اس ، مؤ] پرازیتولوژي ، د هغه بوټو علم کوم چې په نورو ونُو بوټو یا پـه دیوالونو وغېره خورېږي.

**پرازیتولوژي** :- (پْ + را + زِيْ + تو + لو + ژِيْ) [پ (روسـي قـاموس) اس ، مؤ] و ــــ پرازیتولوجي.

**پرازیتي** :- (پْ + را + زِيْ + تـِيْ) [انـګ ، ص ] (۱) هغـه بـوټي یـا پروتـې خیلی چې په بل بوټي یا دیوال باندې خورېږي (۲) مفت خور ، تـالي څټ.

**پراژیکتـــور** :- (پْ + را + ژِ + کْ + تـو + رْ) [پ (روسـي قـاموس) انـګ ، پراجېکټر ، اس ، مذ] و ـــــ پراجېکټر.

**پراسپکټس** :- (پْ + را + سْ + پ + کْ + ټَ + سْ) [انګ ، اس، مـذ ، وا ، ج : پراسپکټسونه ] هغه رسالـه یا کتابګوټے چې په کښې د څۀ کار حالات او تفصیل لیک وي ـ اکثر د کالجونو ، یونیورسټو او کمپنـو په باره کښې چاپ شوي معلومات ته وائي.

**پُر اسرار** :- (پُ + رْ + اَ + س+ را + رْ) [فا ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پُراسراره ، ج : پُر اسرارې) ] د رازُونو نه ډک ، د پټو خبرو نه ډک پټ.

**پراشوت** :- (پْ + را + شُوْ + تْ) [پ (روسـي قـاموس) انګ : پېراشوټ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پراشوټونه ] یو خاص قسـم چهتـرۍ چې د هوائي جهاز نه پرې راکوزېږي ـ پېراشوټ ، هوائي چهترۍ.

**پراشوتي** :- (پْ + را + شُوْ + تِيْ) [پ (روسـي قـاموس) ص] پېراشـوټ یـا هوائي چترۍ سره تعلق لرونکے ـ چاته بردار.

**پراشوتي عسکر** :- (پراشُوتي + عَ + سْ + کَ + رْ) [پ (روسي قاموس) اس ، ص] چاتـه بـردار فـوځ ، د چتـرۍ پـه ذریعـه د الوتکـو نـه راکوزېدونکے فوځ ، په پېراشوټ کوزېدونکے فوځ.

**پرافټ** :- (پْ +را + ف + ټْ) [انګ (Profit) اس، مذ] منافع ، ګټه ، سُود.

**پرافټ** :- (پْ + را + فِ + ټْ) [انګ (PROPHET)، اس ، مـذ] پېغمبر ، رسول ، نبي.

**پراکـــرت** :- (پْ + رآ + کْ + رِ + تْ) [س ، اس ، مــذ] پراکرتــي ژبــه ، د سنسکرت وران شکلې ژبه.

**پراکراتي** :- (پْ + را + کْ + رَ + تِيْ) [پ ، تر ، اس ، مؤ] و ـ پراکرت

**پراګ** :- (پْ + را + ګْ) [اسم علم ] د چېکوسلواکیه نومِ ملک یو مشـهور ښار.

**پراګنـــدګي** :- (پْ + را + ګَ + نْ + دَ + ګـيْ) [فــا ، اس ، مــؤ، وا ، ج: پراګندګي ] (۱) خور وور والے ، انتشـار ، (۲) پرېشـاني ، فکـر ، وارخطائي، تشویش ، اندېښنه.

**پراګنده** :- (پْ + را + ګَ + نْ + ده) [فـا ، ص ج (۱) خور وور ، تـس نـس ، منتشـر ، نوسـتلے شـوے ، (۲) پرېشـانه ، اندېښـمن ـ حېرانه، فکر

منند ، وارخطا ـ

ـــــ **کول** :- (مص مت) (۱) خور وور غـورول ، خـورول ، تـس نـس کـول (۲) پرېشانه کول، وارخطا کول ، اندېښمن کول ـ

ـــــ **کېدل** :- (مص لا) (۱) تـس نـس کـېـدل ، خورېـدل ، منتشـر کـېـدل (۲) پرېشانه کېدل ، اندېښمن کېدل ، وارخطا کېدل ،

**پراګـوے** :- (پْ + را + ګـو + ئـے ) [ اس ، معـرا پـارا ګـوئـے ، د سـویلي امریکې یو مشهور ښار ـ

**پُـرامن** :- (پُ + رْ + اَ + مَ + نْ ) [ فـا ، ص ، مـذ ، وا(مؤ ، وا : پرامنـه ، ج: پرامني ] امن ناک ، چې شر فساد ، جنګ جګړې پکښې نهٔ وي ـ

**پُـران** :- (پُ + را + نْ ) [ س ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پُرانونـه ] د هنـدوانو هغـه مذهبي کتابونـه چې د وېـدونو تشریح پکښې شوې ده ـ هسې پـه شمار خو زیات دي ـ ولې اتلس (۱۸) پکښې ډېر مشهور دي ـ

**پرانتل** :- (پْ + را + نْ + تْ + لْ ) [ پ ، مص مت ] (۱) پرانستل ، لرې کـول (۲) افتتاح کول (۳) ایله کول ، خلاصول ، (۴) سپړدل غوړول ـ

چې ئې خولې له تبسم خندې پرانت
د ګـــدا تــه ئې د قندو انډې پرانت عبدالحمید

**انډے پرانتل** :- (اص) انډے خلاصول ، د بار مال اسباب سپړدل ـ

**تنې پرانتل** :- (اص) تنې خلاصول ،

**پرانتنه** :-(پْ +را + نْ + تْ + نَه ) [ پ ، حمص] (۱) پرانسـتنه ، لرې کونـه ، ببرته کونه ، خلاصونه (۲) افتتاح کونه ، (۳) غوړونه ، سپړدنه

په دعا ئې تسبیح پرانته خولهٔ مخ ته
پـــه زر ژبوئې شانــه د صف د موکه معزالله خان

ـــــ **کول** :- (اف) اص ، افتتاح کول ، په څهٔ کار شروع کول ـ

**پرانته** :- (پْ + را + نْ + تَه ) [ پ ، حمص] پرانسته ، شروع کړه ـ

**پرانتے** :- (پْ + را + نْ + تَے ) [ پ ، اس ، مف ، مذ (مؤ : پرانتې)] پرانستے ، واز ، ویړ ، ببرته ، خلاص کړے ـ

اوس به پکښې ښهٔ فروخت د زړونو د مال کړي
تــــا چې نـــن پرانتدے دے دکان د تورو زلفو معزالله خان

**پرانچه** :-(پ+ را + نْ + چَه ) [ اف : پ (قاموس) اس، مـذ ، وا ، ج: پرانچـه ګان (مؤ ، وا: پرانچګۍ ، ج: پرانچه ګانې ) ] و ـ پراچه ـ

**پُراڼه** :- (پُ + را + ڼَه ) [ پ (عـا) اُر ، پُرانا ، ص ، مـذ ] (۱) زوړ (۲) تجربـه کار ، جهاندیده ، جهان ګشته ـ

**پرانست** :- (پْ + را + نْ + سْ + تْ ) [ پ ، اس ، مـذ ] (۱) پرانتنـه ، افتتـاح (۲) خلاص ئې کړو ، وئې سپړدو (۳) د بند نه ئې ازاد کړو ـ

ـــــ **کول**:-(اص) افتتاح کول،د خلاصولو یا شروع کولو دستوره کول

**پرانســتل** :- (پْ + را + نِ + سْ + تْ + لْ ) [ پ ، مـص مـت ] (۱) پرانیتـل پرانیستل ، پرانیځل ، لرې کول ، ببرته کول ، خلاصول (۲) سپړدل ، غـوړول (۳) غـره ول ، لکـه سـترګې پرانسـتل (۴) افتتـاح کـول ، د شروع کولو دستوره کول (۵) بري کول ، رهائي ورکول ، د قېد و بند نه ازادول ـ

چې رقیب راتــــه تــــړلے پــه زنځیر ؤ
خپل حبیب راباندې پرانست هغه در بیا رحمٰن بابا

**پرانستلے** :- (پْ + را + نِ + سْ + تْ+لَے ) [ پ، اس، مف، مذ ، وا ، ج : پرانستلي ، (مؤ ، وا: پرانستلې ) ] (۱) پرانیتے ، پرانیځلے ، لرې شـوے ، ببرتـه شـوے ، خـلاص شـوے (۲) سـپړدلے ، غـوړېـدلے ، (۳) غړېدلے (۴) افتتاح کړے شوے (۵) ازاد شوے رها شوے ـ

**پرانســتنه** :- (پْ + را + نِ + سْ + تْ + نَـه ) [ پ، حمـص ] (۱) پرانسـتنه پرانیتنه، پرانیځنه ، لرې کونه ، ببرته کونه ، خلاصونه (۲) سپړدنه ، غوړېدنه ، (۳) غړېدنه (۴) افتتاح کونه (۵) ازادونه ، رها کونه ـ

ښهٔ تازي په ډور تړلي
پـــرانستنه په وار وار خوشحال

**پرانستُونکے** :- (پْ + را + نِ + سْ + تُو + نْ + کَے ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پرانستُونکي ] (۱) پرانیتُونکے ، پرانیځونکے ، لرې کوونکے ، ببرتـه کـوُونکے ، خلاصـوُونکے (۲) سـپړدونکے ، غـوړوُونکے (۳) غړوُونکے (۴) افتتاح کوُونکے (۵) ازادوونکے ، رها کوُونکے ـ

**پرانسته** :- (پْ + را+ نِ + سْ + تَه ) [ پ ، حمص] و ـ پرانستنه ـ

**پرانستے** :- (پْ+را + نِ + سْ + تَے ) [ پ ، اس مف ، مذ ، وا ، ج : پرانستي (مؤ ، وا: پرانستې ) ] و ــــ پرانستلے ـ

**په پرانستو سترګو** :- (اص) (۱) په وازو سترګو ، په غړېدلو سترګو په ویښو سترګو ، (۲) ښهٔ په پوهه او په فکر ، په ډېر سوچ فکر ـ

**پرانسے** :- (پْ + را + نْ + سَے ) [ پ (عـا) انـګ ، فـرینچ ، اص ص ، مـذ ] (۱) فرانسیسے ، فـرانس سره تعلق لـرونکے ، (۲) پـه فـرانس کښې جوړ شوے لکه : پرانسے ټوپک ـ

**پرانیتل** :- (پْ + را + نِيْ + تْ + لْ ) [ پ ، مص مت] و ـ پرانستل

**پرانیتلے** :- (پْ + را + نـيْ + تْ + لـے ) [ پ ، اس ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: پرانیتلي (مؤ : پرانیتلې ) ] و ــــ پرانستلے ـ

**پرانیتنه** :- (پْ + را + نِيْ + تْ + نَه ) [ پ ، حمص ] و ـ پرانستنه ـ

**پرانیتونکے** :- (پْ + را + نِيْ + تُوْ + نْ + کَے ) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پرانیتونکي (مؤ : پرانیتُونکې ) ] و ــــ پرانستونکے ـ

**پرانیتے** :- (پْ + را + نِيْ + تَے ) [ پ ، اس ، مف ، مذ ، وا و ج : پرانیتلي ، (مؤ : پرانیتې ) ] و ــــ پرانستلے ـ

**پرانیځل** :- (پْ + را + نِيْ + ذْزَ + لْ ) [ پ ، مص ، مت ] و ـ پرانستل

**پراینځلے** :- (پ + را + نـيْ + ذْز + لَـے ) [ پ ، اس ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: پرانیځلي ، (مؤ : پرانیحلې ) ] و ــــ پرانستلے ـ

**پرانیځنه** :- (پْ + را + نِيْ + ذْز + نَه ) [ پ ، حمص] و ــ پرانستنه

**پرانیځونکے** :- (پْ + را + نـيْ + ذْزُ + وْ + نْ + کَـے ) [ پ ، اس ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج : پرانیځُونکي (مؤ : پرانیځونکې ) ] و ـ پرانستونکے ـ

**پرانیستل** :- (پْ +را + نِيِ+ س + تْ + لْ ) [ پ، مص ، مت ] و- پرانستل ـ

**پرانیستلے** :- (پ+ را + نِيْ + سْ + تْ+ لَے ) [ پ ، اس ، مف ، مذ، وا ، ج : پرانیستلي ، (مؤ : پرانیستلې ) ] و ــــ پرانستلے ـ

**پرانیستنه**:-(پْ + را + نِيْ + سْ + تْ + نَه ) [ پ ، حمص] و ــ پرانستنه ـ

**پرانیســتے** :- (پْ + را + نـيْ +سْ + تَـے ) [ پ ، اس ، مـف ،مـذ ، وا ، ج : پرانیستي ، (مؤ : پرانیستې ) ] و ــــ پرانستے ـ

**پراو** :- (پَ + را + وْ ) [ اف : پ (قاموس) مذ ] پاتې شونې اوبهٔ ، پاتې شوې ښوروا ـ

**پراوډنټ فنډ** :- (پْ + را + و + ډ +نْ + ټْ + فَ +نْ + ډْ ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پراوډنټ فنډونه ] امدادي پنګه ، پـه کومو ادارو کښـې چې ملازمانو ته د پنشن رعایت نهٔ وي هلتـه د هغوي تنخواه نـه پـه هره میاشت کښې یو خاص رقم کټ کېږي او هغومره پیسې د ادارې د طرفه ورسره جمع کېږي ـ کله چې دا ملازم نوکري پوره کړي نو ټول رقم په یو ځاے ورته ورکړے شي دې رعایت ته پراوډنټ فنډ وائي ـ

ـــــ **اخستل** :- (اص) د خپل پراوډنټ فنډ د جمع پیسو نه څهٔ رقم د پور په ډول اخستل ـ

ـــــ **کټ کول** :- (اص) (۱) د تنخواه نـه پـه مقرر حساب د پراوډنټ دپاره

پیسې کټ کول (۲) د پراوډنټ فنډ نه د اخستې قرضې قسط پرېکول.

**ـــــ کټ کېدل** :- (اص) (۱) د تنخواه نه په مقرر حساب د پراوډنټ دپاره پیسې کټ کېدل ، (۲) د پراوډنټ فنډ نه د اخستې قرضې قسط پرې کېدل

**پراونس** :- (پْ + را + وِ + نْ + سْ) [ انګ ، اس ، مذ ،وا] صوبه .

**پراونشل** :- (پْ + را + وِ + نْ + شَ + لْ) [ انګ ، ص ] صوبائي ، صوبې سره تعلق لرونکے

**پراونشل اټانومي** :- (پراونشل + ا + ټا + نو+ مِيْ) [ انګ ، اس ، ص مؤ ] صوبائي خودمختاري .

**ـــــ سول سروس** :- (پراونشل + س + وَ + لْ + سَ + رْ + وِ + سْ) [ انګ اس ، ص ، مذ] د صوبې غېر فوجي ملازمت ، پي سي ايس .

**پراويز** :- (پْ + را + وي + زْ) [ پ، اس ، مذ ، وا ، ج : پراوېزونه ] (۱) د بالښت برستنې رابرے مغزئ يا پيڅه (۲) د کوټې د چت چجه .

**پرائز**:-(پ+ را+ئِيْ + زْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرائزونه ] انعام ،

**ـــــ اخستل** :- (اص) انعام اخستل ، انعام ګټل .

**ـــــ ګټل** :- (اص) و ـــــ پرائز اخستل .

**ـــــ ورکول** :- (اص) انعام ورکول .

**پرائز بانډ** :- (پرائز + با +نْ + ډْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پرائز بانډونه يا بانډينه ] انعامي دستاوېز ، د پنځو يا لسو روپو هغه د نوټ په شان کاغذ چې خلق ئې د بېنک يا ډاکخانې نه په نغدو اخلي .په مقرره مياشت ددې بانډونو خسنې يا ايسک اچولے کېږي .چې د کوم نمبر بانډ ې خسنې راوزي نو هغهٔ ته مقرر انعام ورکولے شي .

**ـــــ اخستل** :- (اص) د بېنک يا ډاکخانې نه په نغدو انعامي بانډ اخستل

**ـــــ راوتل** :- (اص) په انعامي بانډ انعام راوتل .

**پرائمر** :- (پْ + را + ئـِي + مَ + رْ) [ انګ ، اس، مذ ، وا ، ج : پرائمرونه] قاعده ، اولنے کتاب .

**پرائمري** :- (پْ + را + ئِـمْ + رِيْ) [ انګ ، اس ، مؤ، وا ، ج : پرائمري ] ابتدائي اولنے .

**ـــــ سکول يا مدرسه** :- (اس) ابتدائي سکول ، اولنۍ مدرسه ، چې د ادنٰی جماعت نه تر پنځم جماعت پورې سبق پکښې وئيلے شي .

**پرائم منسټر** :- (پْ +را + ئِم + مَ + نِ + سْ + ټَ+رْ) [ انګ ، اس ، مذ وا ، ج : پرائم منسټران (مؤ ، پرائم منسټره ، ج : پرائم منسټرې)] لوے وزير ، ستر وزير ، وزيراعظم ، صدراعظم .

**پرائم منسټري** :- (پرائم + مَ + نِ + سْ + ټَ + رِيْ) [ پ تر ، اس، مؤ ، وا، ج : پرائم منسټرۍ ] وزيراعظمي ، صدراعظمي ، لوے وزير توب ، ستر وزارت .

**پرائيوېټ** :- (پْ +را + ئَي + وې + ټ) [ انګ ، ص ] پروېټ ، پروېټمي (۱) ځاني، نجي ، ذاتي ، کار يا خبره وغېره (۲) پټه ، پوشيده ، د راز (۳) هغه طالب علم چې مدرسه يا کالج کښې ئې سبق نهٔ وي وئيلے او خپل کور کښې امتحان له تيارے کوي .

**پرائيوېټ امتحان** :- (پرائيوېټ + ا + مْ + ت + حا + نْ) پ تر ، اس ، مذ ، وا ، ج: پرائيوېټ امتحانونه يا امتحانينه ] په سکول ، کالج يا يونيورسټۍ کښې د باقاعده سبق وئيلو نه بغېر په ذاتي تيارۍ امتحان ورکول .

**پرائيوېټ ډاکټر**:- (پرائيوېټ + ډا+ ک+ ټَ + رْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرائيوېټ ډاکټران يا ډاکټرون (مؤ ، وا] پرائيوېټ ډاکټره ، ج : پرائيوېټ ډاکټرې ] غېر سرکاري طور سره خپل هسپتال چلوي .

**پرائيوېټ سکتر** :- (پرائيوېټ + سَ + کْ + تَ + رْ) [ پ ، تر ، اس مذ ، وا ، ج : پرائيوېټ سکتران ، (مؤ ، وا : پرائيوېټ سکتره جې : پرائيوېټ سکترې) ] پرائيوېټ سېکرټرۍ ، ذاتي معتمد .

**پرائيوېټ سېکټر** :- (پرائيوېټ + سې + ک + ټَ + رْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا] ذاتي مد ، په خپله سرمايه جوړ کړې کارخانه يا کاروبار .

**پرائيوېټ سيکرټري** :- (پرائيوېټ + سې + کْ + رِ + ټَ + رِيْ) [ انګ اس ، مذ ، وا ، ج : پرائيوېټ سېکټريان] و ـــــ پرائيوېټ سکتر .

**پرائيوېټ فنډ** :- (پرائيوېټ + ف + نْ + ډْ) [ انګ ، س ، مر ، مذ ، وا ، ج : پرائيوېټ فنډونه يا فنډينه ] نجي پنګه ، ذاتي پنګه ، د يوې اداري هغه فنډ چې د حکومت نه پېسې ورته نهٔ راځي .بلکې په خپلو وسيلو او ذريعو جمع کولے شي .

**پرائيوېټ ګاډے** :- (پرائيوېټ + ګا + ډَ ے) [ پ تر ، اس ، مذ ،وا ، ج: پرائيوېټ ګاډي ] نجي موټر يا لاري ، شخصي ګاډے ، د کرايې دپاره قانوناً نهٔ شي استعمال کېدے .په تختۍ ئې نمبر په سپين رنګ ليکلے شوے وي .

**پـر پـانړو** :- (پَ + رْ + پـا + نـو) [اف : پ (قـاموس) اس مـذ ، وا ، ج : پرپانړوګان ] مرغونے ،

**پر پر** :- (پْ + رْ + پْ + رْ) [ پ ، اسم ، صوت ] (۱) در در تر تر لکه : پر پر راتوئيدل ، (۲) تر تر ، پز پز ، د تيز اچولو اواز .

**ـــــ کول** :- (اص) (۱) تر تر کول، د تيز په يو مخ اواز ايستل (۲) پرېدل، ډرېدل .

پـرواز پرې پرې پرې که
اور څو بل په فتيله دے          خوشحال

**پرپرائے** :- (پر + پْ + را + ئے) [ پ (ب ، خ) اس صو] و ـ پرپر

**پرپرک** :- (پْ +رْ + پْ + رَ + کْ) [ پ ، اس ، صو ، مذ ] د وزرو وهلو اواز
چتے باز په پرونو نهٔ شو
کـه الـوزي پرپرک کا          خوشحال

**پـر پرکے** :- (پ + رْ + پ + رَ + کے) [پ ، اس ، مذ، وا، ج : پرپرکي ] يو قسم پتنګ يا وزرو واله چينجے چې اکثر په ګنو کښې پيدا کېږي او فصل ته نقصان رسوي .

**پرپـرے** :- (پْ + رْ + پْ + رَے) [ پ ، اسم ، صـوت] پرپـرک ، د مارغـهٔ وغېره د وزرو اواز ، رپړے .

**ـــــ کول** :- (اص) وزر رپول .

**پرپے** :- (پُ+ رْ + پَے) [ اف : پ (قاموس)] په لاس کښې ، په قبضه کښې ، په ولقه کښې .

**ـــــ کول** :-(اف) اص .په قبضه کښې راوستل، په لاس کښې راوستل، تر لاسه کول

**ـــــ کېدل** :- (اف) اص .په قبضه کښې راتلل ، په لاس کښې راتلل ، په ګوتو کښې راتلل ، تر لاسه کېدل .

**پرپيچ** :- (پُر +پي+ چْ) [فا ،اس، ص ، مذ ، (مؤ، وا: پرپېچه ، ج: پرپېچې)] د پېچ نه ډک، تاؤ راتاؤ ، پېچدار ، ول ول ، کاږهٔ واږهٔ ، ګړګوتي .
مـــه شـــه وګتے پُر پېچ زلفې د ترکو
چې هر تار ئې د زړهٔ ته جنجان پرېوت     عبدالحميد

**پرپيړه** :- (پَ + رْ + پي + ړه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: پرپيړې ] خربړے ، پُوځکۍ ، ډينګرې ، مرخېړۍ ، دُورنګ ، خومبه ،

**پرت** :- (پَ + رْ + تْ) [ اف : پ (قاموس) ص ] بند ، تړلے شوے ، بنديوان .

ـــــ **کول** :- (اف) اص ـ بندول ، تړل ، بنديوان کول ـ

ـــــ **کېدل** :- (اف) اص ـ بندېدل ، بنديوان کېدل ، تړلے کېدل ـ

**پـرت** :- (پْ + رْ + تْ) [ پ ، حـرف صـوت ] (۱) پـه زور سـره د خـولې د توکانو غورزولو اواز ، چرت ، (۲) ترت ، ډرت ، پر ، د تيز اواز ـ

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) د پرت اواز سره توکانې توکل ، (۲) تيز اچول ـ

ـــــ **پرت کول** :- (اص) (۱) ترت ترت کـول ، پـه يـو مـخ پرلـه پسې تيزونـه اچول (۲) پرېدل ، ډرېدل ـ

**پـــرت** :- (پْ + رْ + تْ) [ پ ، اس ، مـذ ، (مـؤ ، وا ، پرتـه ، ج : پرتـې) ] (۱) فضول ، عبث ، بې فائدې ، بکواس ، (۲) شنډ ، بې ميوې (ظفر) ـ

**پرتاب** :- (پَ + رْ + تا + بْ) [ پ ، اس ، مذ (مؤ ، وا ، پرتابه ، ج : پرتابې) ] (۱) تـوپ وهـل ، دانګـل ، عمومـاً خـوب سـره اسـتعمالېږي ـ لکـه : راپرتـاب کېـدل ، ناڅاپـه د خوبـه ويښـېدل او دانګـل ـ (۲) د غشـې د ويشتو فاصله ـ

د پــــائـــلو د شنـائې ژرنګهار شۀ
زۀ له خوبه راپر تابه شوم ډېر په وير خوشحال خان

**پرتال** :- (پَ + رْ + تا + لْ) [ اُر ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرتالونه ] پړتـال ، لټون ، څۀ څيز کتل راکتل ، جائزه ، جاج ـ

**پرتاؤ** :- (پَ + رْ + تا + ؤ) [ پ ، اس ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرتاؤونه ] پړتـاؤ ، ارتاؤ ، غورزېدلے ، پرېوتلے ـ

ـــــ **کول** :- (اص) پړتـاؤ کـول ، ارتـاوول ـ پړتـاوول ، پـه زور سـره څـۀ شے غورځول ، راخلاصول ، راګذارول ـ

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) پړتاؤ کېدل ، ارتاوېدل ، راغورځېدل ، (۲) ناڅاپـه راويښېدل ، ناڅاپه د خوبه پاڅېدل ـ

**پُر تکلف** :- (پُر + تَ + کَ + لْ + لُ + فْ) [ فـا ، اس ، مـص ، مـذ ، ۰مـؤ ، وا : پُرتکلفه ، ج : پُرتکلفې) ] د تکلف نه ډک ، په ډېره خوارئ او اهتمـام سره تيار کړے شوے ، (۲) ډېر ډولے ـ

**پرتګــال** :- (پُ + رْ + تَ + ګـا + لْ) [ اس ، علـم ] پـه يـورپ کښـې د يـو مشهور ملک نوم ـ

**پرتګالے** :- (پُ + رْ + تَ + ګا + لَے) [ پ تر ، اس ، مذ ، وا ، ج : پُرتګاليـان ، (مؤ : پرتګالئ) ] (۱) د پُرتګال ملک اوسېدونکے ، پُرتګالې (۲) د پُرتګال سره تعلق لرونکے ـ

**پرتګالي** :- (پُ + رْ + تَ + ګا + لِيْ) [ ص ] (۱) د پرتګـال ملـک سره تعلق لرونکے (۲) پُرتګال په ملک کښې جوړېدونکے ـ (۳) د پُرتګال ژبه ـ

دواړه شونډې دې شراب پرتګالي دي
پـه ســوروالي د ياقوتو په سيالي دي خوشحال خان

**پرتــل** :- (پَ + رْ + تَ + لْ) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پرتلونـه ] (۱) هغـه سامان چې کوچيان ئې د کوچ يا سفر نه وړاندې بـل ځـاے تـه لېږي ـ پېش خانـه ، د سفـر سامان (۲) د بلـورو ، اکـوړو يـا غوزانو لوبـه (۳) د ننبـتـر او ننډر تر مېنځه يوه وُنه ، چې لرګے ئې د ابادئ پـه کـار راځـي (۴) د ساروان د اوښ دپاسه تړلې ترنګړ ـ

ـــــ **تړل** :- (اص) د ساروان د اوښ دپاسه ترنګړ داسې تړل چې د کټـې دواړو اړخونو ته پراتۀ وي ـ او ساروان ئې پـه مېـنځ کښـې پـه مـزه اودۀ کېدلے شي ـ

ـــــ **کول** :- (اص) د بلورو ، اکوړو يا غوزانو لوبه کول ـ

**پرتله** :- (پَ + رْ + تَ + لَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] مقابلـه ، اندازه ، موازنه ، سنجيده ـ

ـــــ **کول** :- (اف) اص ـ موازنه کول ، سنجول ، مقابله کول ، اندازه لګول

ـــــ **کېدل** :- (اف) اص ـ موازنه کېدل ، سنجېدل ، اندازه کېدل ـ

**پرتم** :- (پَ + رْ + تَ + مْ) [ پ ، اس ، مذ ] هېبت ، رُعب ، دبدب ـ

**په پرتم کښې کېدل** :- (اص) هېبت ناک کېدل ، رعب دار جوړېدل ـ

**له پرتمه لوئېدل** :- (اص) کمزورے کېدل ، رعب نه پاتې کېدل ، د دبـدبَ پرېوتل ـ

**پرتمين** :- (پْ + رْ + تَ + مـيْ + نْ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ (مؤ ، وا : پرتمينـه ، ج : پرتمينــې) ] هېبتنــاک ، ويــره وونکــے ، رُعـب نــاک د شوکت خاوند ، د دبدبې مالک ـ

**پرتو** :- (پَ + رْ + تَوْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ] رڼا ، شعاع ، عکس ـ

چې پــه هر درد ديوار دې پرتولګي
هغه هسې رنګ افتاب مئين تۀ ئې عبدالحميد

**پرتوغانې** :- (پَ + رْ + تُوْ + غا + خ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرتوغاخونه ] بګه ، باګه ، ازاربند ، د پرتوګ د تړلو مزے ، لال ، پرتو ګانې ـ

ـــــ **پرانستل** :- (اص) (۱) بګه پرانستل ، (۲) بدکاري کول ـ

ـــــ **سُستېدل** :- (اص) (۱) بګه يا لال سستېدل (۲) همت بائيلـل ـ پـه زړۀ کښې ويره پيدا کېدل ـ

**د پرتــو غــاخ ســست** :- (اص) بـدکارئ تـه زر امـاده کېـدونکے ، بـدچلن بدچلنده ـ

**پرتوګ** :- (پَ + رْ + تُو + ګْ) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پرتُوګونـه ] پرتُـوګ ، پړتيک ، شلوار ـ

ـــــ **اچول** :- (اص) پرتوګ اغوستل ـ

ـــــ **اغوستل** :- (اص) (۱) پرتُوګ يا شلوار اچول ، د پرتُوګ پـه اغوسـتو ځان پټول (۲) د هلک يا جينئ د پرتوګ اغوستو جوګه کېدل ـ

ـــــ **اوباسل** :- (اص) (۱) پرتوګ ايستل (۲) شرمول ، بې عزته کول ، شرم حيا اخستل ، پرتوګ اوکاږل ، پرتوګ اوکښل ـ

ـــــ **اوچتول** :- (اص) د اوبـو يـا چيکړو نـه د بچې کولـو دپـاره د پرتـوګ پېنځې پورته کول ـ

ـــــ **اوچتېدل** :- (اص) د اوبـو يـا چيکړو نـه د بچ کېـدو دپـاره د پرتـوګ پېنځې پورته کېدل ـ

ـــــ **اوکاږل** :- (اص) و ـــــ پرتوګ اوباسل ـ

ـــــ **ايستل** :- (اص) (۱) پرتوګ اوباسل ، پرتوګ کښـل ، پرتـوګ کـوزول (۲) بې حيا کېدل ، په ننګ او شرم کار نۀ لرل (۳) بې عزته کول ، بې ابرو کول ، شرمول (۴) د چا پټ راز ښکاره کول ، خصوصـاً هغـه راز چې د هغۀ په کښې سپکاوے يا بدنامے وي ـ

ـــــ **ايستلے** :- (اص) هغه سړے چې پرتوګ ئې استے وي (۲) بې حيا ، بې شرم ، پرتوګ وکښلے ـ

ـــــ **په چنار اچول** :- (اص) پرتوګ په ډکې اچول ، پرتوګ په ډکـې کـول ، د چا شرمول او سپکاوے کول ـ د چا ډېره بې عزتي کول ـ

ـــــ **په ډکې اچول** :- (اص) و ـــــ پرتوګ په چنار اچول ـ

ـــــ **په ډکې کول** :- (اص) و ـــــ پرتوګ په چنار اچول ـ

ـــــ **په ډکې کېدل** :- (اص) د چا شرم حيا اخستلے کېـدل ، ډېره بې عزتي او سپکاوے کېدل ـ

ـــــ **جوړول** :- (اص) (۱) پرتـوګ ګنـډل يـا تيـارول ، (۲) د څۀ غلطئ يـا جرم پټولو يا د جواز دپاره څۀ وجه لټول يا بهانه جوړول ـ

ـــــ **جوړېـدل** :- (اص) (۱) پرتـوګ ګنـډلے کېـدل يـا تيارېـدل ، (۲) د څـۀ غلطئ پټولو دپاره بهانه جوړېدل ـ

ـــــ **زېږول** :- (اص) (۱) پرتوګ کښې لوے بول کول ، پرتوګ ګنده کـول

، پرتوګ سخا کول (۲) ویرې اخستل ، د ویرې انتهائي حالت ، ډېرزيات ویرېدل یا ډرېدل۔

ـــــ **زيږېدل** :- (اص) (۱) پرتوګ ګنده کېدل ، پرتوګ سخا کېدل ، پرتوګ کنبې لوے بول کېدل (۲) ډېر زيات ویرېدل یا ډرېدل۔

ـــــ **سخا کول** :- (اص) و ـــــ پرتوګ زيږول۔

ـــــ **سخا کېدل** :- (اص) و ـــــ پرتوګ زيږېدل۔

ـــــ **سکېل** :- (اص) په مقرر ناپ د پرتوګ د کپړې کټ کول۔

ـــــ **کښل** :- (اص) و ـــــ پرتوګ ایستل۔

ـــــ **کوزول** :- (اص) و ـــــ پرتوګ ایستل۔

ـــــ **ګنده کول** :- (اص) و ـــــ پرتوګ زيږول۔

ـــــ **ګنده کېدل** :- (اص) و ـــــ پرتوګ زيږېدل۔

ـــــ **مېچ کول** :- (اص) پرتوګ نيول۔

ـــــ **نيول** :- (اص) د پرتوګ جوړولو دپاره ناپ اخستل، پرتوګ مېچ کول

**اوښې ته پرتوګ جوړول** :- (مح) (۱) د يو خطا يا نا جا ئز کار دپاره داسې جواز پيدا کول چې هغه صفا غلط وي ۔ (۲) نۀ کېدونکے يا ناشونکے کار کول۔

**د بل په پرتاګۀ ځان پټول** :- (مح) اص ۔ (۱) د بل چا په کارنامه لوئي کول (۲) د بل سرې په ذريعه خپل عزت بچ ساتل۔

**دروند پرتوګ** :- (اص) ۀګېډے پرتوګ ، ګېبے پرتوګ ، ګور پرتوګ۔

**ګور پرتوګ** :- (اص) و ـــــ دروند پرتوګ۔

**ګېبے پرتوګ** :- (اف) اص۔و ـــــ دروند پرتوګ۔

**ګېډے پرتوګ** :- (اص) و ـــــ دروند پرتوګ۔

**نچه پرتوګ** :- (اص) تنګ پرتوګ۔

**پرتوګاښ** :- (پَ + رْ + تُو + ګا ، شْ يا خْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ وا: ج : پرتوګاښونه] و ـــــ پرتوغاښ۔

ـــــ **په شلېدل** :- (اف) اص۔ په څۀ کار زيات ځان کړول۔

**پرتُـو ګـور** :- (پَ +رْ+ تُـوْ + ګَ + وَ + رْ) [پ ، اس ، ص ، مـذ (مـؤ ، وا: پرتوګوره ، ج : پرتوګورې) ] د دروند پرتوګ خاوند ۔چا چې ګور پرتوګ اغوستے وي۔

**پرتـول** :- (پَ + رْ + تَ + وْ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص مـت ] د غـوړو وغېره سُورے بندول۔

**پرتول** :- (پْ + رْ + تَ + وَ + لْ) [پ (ب + خ) مص مت ] غـوول ، بـدکاري کول ، دا ټکے د کنځلو په ډول استعمالېږي۔

**پرتونه** :- (پَ + رْ + تَ+ وْ + نَه) [اف : پ (قـاموس) حمص] د غـوړو وغېـره سورے بندونه۔

**پرتونه** :- (پْ + رْ + تَ + وْ + نَـه) [پ (ب، خ) حمص] غوونه ، بـد کـاري کونه ، د کنځلو په ډول استعمالېږي۔

**پرتُونے** :- (پَ + رْ + تُـو + نَـے) [پ ، (پ (ب ، خ) اس ، مـذ ، وا، ج : پرتُوني] د غاړې يو کالے۔

**پرتُوونکے** :- (پَ + رْ + تَ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قـاموس) اس فـا ع ، مذ ، وا، ج : پرتـوونکي ، (مؤ : پرتـوونکې) ] د غـوړو وغېـره سورے بندوونکے۔

**پرتُوونکے** :- (پْ + رْ + تَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ (ب، خ) اس ، فا ع ، مف ، مذ ، وا، ج : پرتُوونکي ] (۱) غوونکے ، بدکاري کوُونکے (۲) غـولے کېدونکے۔

**پرتـه** :- (پْ + رْ + تَـه) [پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : پرتې] (۱) اوږده شـوې، غزېدلې (۲) موجوده، حاضره (۳) دښمني ، لکه ''ورسره پرته ئې ده

**پرته** :- (پْ + رَ + تَه) [پ ، کلمه] (۱) بغېر ، بې له دې ، سېوا (۲) فضول ، بېهوده ، کاواکه (۳) مسخ ، مخ اوښتے۔

ـــــ **پرته** :- (اص) هواګير ، پاس پاس ، هوائي ، په خمار کښې ، په نشـه کښې

ـــــ **ګډېدل** :- (اص) (۱) پاس يا پورتـه ګډېـدل ، د درياب يا نهر پـه بـره غـاړې پـورې وتلـو دپـاره ورګډېـدل (۲) بـې مـوقعې غړېـدل (۳) بـې موقعې رغېدل ، فضول خبرې کول۔

ـــــ **ګرځېدل** :- (اص) فضول ګرځېدل ، بې مطلبه شورېدل

ـــــ **وئيل** :- (اص) فضوله وېناکول ، کاواکې وئيل ، الوتې وئيل۔

**مخ پرته کېدل** :- (اص) مخ مسح کېدل ، جُثه بدلېدل ، مشاده خرابېدل۔

**پرته هار** :- (پْ + رْ + تَه + ها+ رْ) [پ ، اس ، صوا] (۱) د خولې نه په يو مخ د توکانړو غورزولو اواز (۲) پرله پسې تېزونه اچونه ، پـرت پـرت کول ، ټرته هار (۳) فضول وېنا ، بې مطلبه خبرې۔

**پرتي** :- (پْ + رَ + تِيْ) [اف : پ (قاموس) اسي ، مؤ] فضول خبرې پوچه وېنا۔

**پرتېدل** :- (پْ + رْ + تې + دْ + لْ) [پ ، مص ، لا] (۱) مسح کېدل ، مُشـاده خرابېدل ، د مخ جُثه ورانېدل (۲) ټرتېدل ، تېزونـه اچـول (۳) فضـوله وېنا کول ، بې مطلبه رغبدل۔

**پرتېـدل** :- (پَ + رْ + تـې + دْ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص لا] د غـوړو سُورے بندېدل

**پرتېدنګ** :- (پْ + رْ + تې = دَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قـاموس) حمص] و ـــــ پرتېدنه۔

**پرتېدنـه** :- (پْ + رْ + تـې + دْ + نـه) [پ (ب ، خ) حمـص] (۱) ټرتېدنـه تېزونه اچونه (۲) فضول رغبدنه ، بې مطلبه وېنا کونه (۳) اف۔د مخ مُشاده بدلېدنه ، جُثه ورانېدنه ، پرتېدنګ۔

**پرتېدنه** :- (پَ + رْ + تې + دْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] پرتېدنګ ، د غوړو سورے بندېدنه ، پرتېدۀ ۔

**پرتېدونکے** :- (پْ + ر + تې + دُو + نْ + کَے) [پ (ب، خ) مف ، مذ وا ، ج : پرتېـدونکي] (۱) ټرتېـدونکے ، تېـز اچـوونکے (۲) فضـوله وېنـا کوونکے ، بې مطلبه رغبدونکے ۰۳) اف۔د مخ مُشاده بدلېدونکے ، جُثه ورانېدونکے۔

**پرتېدونکے** :- (پَ + رْ + تې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) مف، مذ ، وا ، ج : پرتېدونکي] د غوړو سُورے بندېدونکے۔

**پرتېدۀ** :- (پَ + رْ + تې + دۀ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ پرتېدنه

**پـرچ** :- (پْ + رْ + چْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، صـو ، وا ، ج: پرچـې] (۱) پرنجے ، انتروشے ، انټُوسے ، انږے (۲) د هوسو د منډې په وخت اواز۔

ـــــ **وهل** :- (اف) اص : (۱) انږے يا انټوسے کول (۲) د هوسو دمنډې په وخت اواز کول۔

**پرچ** :- (پْ + رَ + چْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرچُونه ، پرچينه ، پرچان] د چايو د پيالې وړوکے شان لوښے چې د تالي په شان وېږ  پلن وي۔

**پرچال** :- (پَ + رْ + چا + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) د قلا دېوال يا فصيل ، کوټ (۲) د دېوال چجه۔

**پرچاؤ** :- (پَ + رْ + چا ، ؤ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ ، وا: پرچـاوه ج : پرچاوې) ] (۱) پـارچاؤ ، د ژرندې د اوبـو نـاوه ، (۲) بـې کـاره ، بې استعماله۔

**پرچتے** :- (پَ + رْ + چَ + تې) [اف : پ (قـاموس) اس ، مذ] (۱) اخبړ ، لبـو (۲) د دېوال مورى ، د دېوال چجه۔

**پرچکونه** :- (پ + ر + چ + کُو + نَه) [اف : پ (قاموس) اس] زري ټوټه چې د لوپټې يا څادر پيڅو ته ئې د ښائست په ډول ګنډي، کناري، پراويز، فيته، جالر، کانې.

**پرچل**:-(پَ +ر+چَ + لْ) [اف : پ (قاموس) ص] خرابه پاتې شوې مېوه.

**پرچل** :- (پْ + رْ + چَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] پرچ وهل، انړے يا انټوسے کول، پرچنګ، پرچنه.

**پرچم** :- (پَ + رْ + چَ + مْ) [فا، اس، مذ،وا، ج : پرچمونه] جنډه، نشان، بيرغ

که لوئي ته مې ګوري

مياشت د نمر زما پرچم دے     خوشحال خان

**پرچنګ**:- (پَ + رْ + چَ + نْ + ګْ) [اف، پ (قاموس) حمص] و ـ پرچنه

**پرچنه** :- (پْ +رْ + چْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] انړے يا انټوسے کونه، پرچنګ.

**پرچوخے** :- (پَ + رْ + چُو + خَے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج : پرچُوخي] د زخم پټخے، کرنډ،

**پرچُوک** :- (پَ + رْ + چُو + کْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج : پرچوکونه] د پرتوګ اوربخله، پانچه، پښڅه.

**پرچول** :- (پْ + رْ + چَ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] انټروشے يا انړے وروستل.

**پرچولے** :- (پْ + رْ + چَ + وْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج : پرچولي (مؤ : پرچولې)] انړے يا انټروشے راوستلے شوے

**پرچون** :- (پَ+رْ+چُو+نْ) [ه، اس، مذ] (۱) اوړهٔ، دال، مالګه، مرچ، تېل، تماکو وغيره څيزونه (۲) د لږو پيسو سودا، د تهوک ضد، پرچُوڼ

**پرچُوڼ** :- (پَ + رْ + چُو + ڼْ) [پ (عا) ه : پرچون، اس] و ـ پرچون.

**پرچُونکے** :- (پْ +رْ + چُو + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع مذ، وا، ج : پرچُونکي (مؤ : پرچونکې)] انټروشے يا انړے کوونکے.

**پرچونګ** :- (پْ +رْ + چَ + وَ + نْ + ګْ) [اف :پ (قاموس) حمص] و- پرچونه

**پرچونه** :- (پْ + رْ + چَ + وْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] پرچونګ، انټروشے يا انړے راوستنه.

**پرچوونکے** :- (پْ + رْ + چَ + وُو + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس، فا ع، مذ، وا، ج : پرچوونکي (مؤ : پرچوونکې)] چاته انټروشے يا انړے وروستونکے

**پرچه** :- (پَ + رْ + چَه) [فا، اس، مؤ، وا، ج : پرچې] (۱) رقعه، چټه، د کاغذ ټکړه (۲) اخبار، رساله (۳) د امتحان سوالنامه (۴) د واردات کولو نه پس د پوليس د مقدمې په حقله اندراج.

ـــــ **ايستل** :- (اص) د امتحان پرچه حل کول، د امتحاني سوالونو جواب ليکل، پرچه ورکول.

ـــــ **پرې کول** :- (اص) پرچه کټ کول، پرچه چاک کول، پرچه ورکول، د څهٔ واردات کېدو نه پس د پوليس د چا خلاف رپورټ ليکل او د تفتيش کار روائي شروع کول.

ـــــ **پرې کېدل** :- (اص) پرچه کټ کېدل، پرچه چاک کېدل، د څهٔ واردات کېدونه پس د پوليس د چا خلاف رپورټ ليکل، د پوليس کار روائي شروع کېدل.

ـــــ **جوړول** :- (اص) (۱) د امتحان دپاره سوالنامه تيارول (۲) واردات کول.

ـــــ **چاک کول** :- (اص) و ـــ پرچه پرې کول.

ـــــ **کټ کول** :- (اص) و ـــ پرچه پرې کول.

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) امتحاني پرچه حل کول، د امتحان د سوالونو جوابونه ليکل (۲) څهٔ واردات کول، پرچه جوړول.

ـــــ **کېدل** :- (اص) (۱) د امتحان د سوالونو جوابونه ليکل (۲) څهٔ واردات کېدل.

ـــــ **ورکول**:- (اص) (۱) امتحاني پرچه حل کول (۲) و ـــ پرچه پرې کول.

**پرچے** :- (پْ +رْ + چَے) [اف : پ (قاموس) اس صو، مذ، وا، ج: پرچي] پرنجے، انټروشے، انړے، انټُوسے.

**پرچېدل** :- (پْ + رْ + چې + دْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] انټروشے کول، انړے کول.

**پرچېدلے** :- (پْ + رْ + چې + دْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج : پرچېدلي (مؤ : پرچېدلې)] د انټروشي يا انړي په حالت کښې.

**پرچېدنګ** :- (پْ+رْ + چې+ دْ+ نْ + ګْ) [اف:پ (قاموس) حمص] و-پرچېدنه

**پرچېدنه** :- (پْ + رْ + چې + دْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] پرچېدهٔ، پرچېدنګ، انټُروشے يا انړے کونه.

**پرچېدُونکے** :- (پْ + رْ + چې+ دُو + نْ +کَے) [اف :پ (قاموس) فاع، مذ، وا، ج : پرچېدونکي، (مؤ : پرچېدُونکې)] انټروشے يا انړے کوُونکے.

**پرچېدهٔ** :-(پْ + رْ + چې + دهٔ) [اف : پ (قاموس) حمص]و ـ پرچېدنه

**پرڅنګ** :- (پُ + رْ + څَسَ +نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) ص] (۱) پرڅنګ، په خوا، په اړخ، په ډډه (۲) يو خوا ته، يو طرف ته، لرې

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) خوا ته رانژدې کول، په ترخ کښې وهل، غاړې ته اچول (۲) يو خوا ته کول، لرې کول (۳) په اړخ اړول، په ډډه اړول. (۴) توجه نهٔ ورکول، د نظره تېرايستل.

ـــــ **کېدل** :- (اص) (۱) ډډه اړول، اړخ بدلول (۲) يو طرف ته کېدل، لار پرېښول (۳) د چا د مدد نه لاس اخستل.

**پر ځائے** :- (پَ + رْ + دْزا + ئے) [پ، ص] په ځاے باندې، موجود، ولاړ.

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) په خپل ځاے کښېښودل (۲) بحال کول، خپل ځاے ورکول (۳) د چا د موجودګۍ پته لګته کول (۴) څهٔ څيز په زور ورتپل (۵) جينۍ وادهٔ کول.

ـــــ **کېدل** :- (اص) (۱) په خپل ځاے کښېښولے کېدل (۲) بحال کېدل خپل ځاے ورکولے کېدل (۳) د چا د موجودګۍ پته لګته لګېدل (۴) څهٔ څيز په زور ورتپلے کېدل (۵) جينۍ وادهٔ کېدل.

**پرځندانه** :- (پَ + رْ + دْزَ + نْ + دا + نَه) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ وا، ج : پرځنداني] حامله ښځه، په اُمېد، بلوربه، هغه ښځه چې پښه ئې درنه وي

ـــــ **کول** :- (اف) اص ـ ښځه حامله کول، بلوربه ول.

ـــــ **کېدل** :- (اف) اص ـ د ښځې حامله کېدل، بلوربېدل.

**پرځول** :- (پَ + رْ + دْزَ + وْ + لْ) [پ، مص مت] پرزول، په زمکه راغلاصول، نسکورول، پرتاوول،

**پرځولے** :- (پَ + رْ + دْزَ + وْ + لَے) [پ، مف، مذ، وا، ج : پرځولي] پرزولے، په زمکه راغلاص کړے شوے، نسکور کړے شوے، پرتاؤ کړے شوے

**پرځونګ** :- (پَ+ رْ+ دْزَ+ وَ+ نْ+ ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ پرځونه

**پرځونه** :- (پَ + رْ + دْزَ + وْ + نَه) [پ، حمص] پرزونه، په زمکه راغلاصونه، نسکورونه، پرتاوونه.

**پرځوونکے** :- (پَ + رْ + دْزَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ، اس فا ع، مذ، وا ج : پرځوونکي] (۱) پرزوُونکے، په زمکه راغلاصوُونکے، نسکوروُونکے، پرتاوُونے، پرځوونے (۲) پرزوولے کېدونکے، را ارتاوېدونکے، راپرتاؤ کېدونکے.

**پرځوونے** :- (پَ + رْ + دْزَ + وُوْ + نَے) [پ، مف، مذ، وا، ج : پرځووني]

و ـــــ پرخوُونکے .

**پرځېدل** :- (پَ + رْ + دزِيِ + دْ + لْ) [ پ ، مص لا] پرځېدل ، په زمکه راخلاصېدل ، نسکورېدل ، پړتاوېدل ،

**پرځېدلے** :- (پَ + رْ + دزِيِ + دْ + لَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرځېدلي ] پرزېدلے ، په زمکه راخلاص شوے ، نسکور کړے شوے ، پړتاؤ کړے شوے

**پرځېدنګ** :- (پَ + رْ + دزِيِ + دْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص]و ــــ پرځېدنه .

**پرځېدنه** :- (پَ + رْ+دزِيِ+ دْ + نَه) [ پ ، حمص] پرځېدۀ ، پرزېدنه ، په زمکه راخلاصېدنه ، نسکورېدنه ، پړتاوېدنه .

**پرځېدونکے**-(پ+رْ + دزِيِ + دُوْ + نْ + کَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرځېدونکي ] پرزېدونکے ، پرځېدونے ، په زمکه راخلاصېدونکے ، نسکورېدونکے ، پړتاوېدونکے .

**پرځېدُونے** :- (پَ + رْ + دزِيِ + دُوْ +نَے) [ پ ، مف ، مذ ،ا ، ج : پرځېدُوني ] و ـــــ پرځېدونکے .

**پرځېدۀ** :- (پَ + رْ + دزِيِ + دۀ) [ پ ، حمص] و ـــــ پرځېدنه

**پرخ** :- (پَ + رْ + خْ) [ پ ، ع : فرق ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرخُونه ، پرخینه ] (۱) فرق ، بې انصافي ، کسر ، کم والے (۲) رعایت

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) بې انصافي کول ، (۲) خطاکېدل (۳) رعایت کول ، قیمت کمول .

**پـرخ** :- (پُ + رْ + خْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پرخونه ] (۱) ډېر یخ باد (۲) په خولۀ د اوبو د بُوږ وهلو یا پُوکنولو اواز .

**پُرخار** :- (پُر + خا + رْ) [فا ، اس ، ص ، مذ (مؤ ،وا: پُرخاره ، ج: پُرخارې)] (۱) د ازغو نه ډک ، ازغن ، اغزن (۲) د مشکلاتو او تکلیفونو نه ډک .

د غم ښار په هر زړه څريخ دے ، دا فلک دغه ئې څریخ دے
دا چمـــن ګنـــه پُرخــــاره ، دا بلبـــل دا ئـــې چیغـــاره

مصري خان

**پرخاش** :- (پَ + رْ + خا + شْ) [فا ، ص ، مذ] جګړه ، مقابله ، لړائي ، فساد

د کنګاش د پرخاش ښۀ څـوانان پیدا کړه
چې پـرې چـــار د مال د ملک شي انتظام خوشحال

**پرخـت** :- (پَ + رْ + خَ + تْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مـذ] د خـوراک د اندازې نه زیاته په لوښي کښې لمده شوې ډوډۍ .

ـــــ **جوړول** :- (اف) اص ـ د خوراک د اندازې نه زیاته ډوډۍ په لوښي کښې مبده ول .

**پرخم** :- (پَ +رْ + خَ + مْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا] (۱)جنډه ببـرغ ، نشان (۲) مچ ښک ، د مچانو شړلو څیز .

**پرخمار**:-(پُ +رْخُ + ما + رْ) [فا ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پُرخماره ، ج : پُرخمارې) ] خماري ، د خمار نه ډک ، په نشه کښې .

پُـر خمـاره دي دوه ســترګې د مکحـولې
صـد هـزاره خلقـې ئـې کـړې مقتـولې

پر خمارې سترګې و جار باساه ماته
چې پـرې کړمه زاهدي و تقوٰی ماته معزالله خان

**پرخـوا**:- (پَ + رْ + خـوا) [ا : پ (قـاموس) ص ] طرفـدار ، ملګـرے ، پـه مرسته ولاړ ، مرستیال .

ـــــ **کېدل** :- (اف) اص ـ طرفدار جوړېدل ، مرسته کول .

**پرخواتوب** :- (پرخوا + تو + بْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ] پرخواوالے ، طرفداري ، ملګرتیا ، مرسته .

**پرخوا والے** :- (پرخوا + وا + لَے) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ] و - پرخوا توب

**پرخول** :- (پَ + رْ + خَ + وْ + لْ) [ پ ، مص مت ] په خولۀ اوبۀ پُوږ وهل ، پُوکنول

**پُرخـون** :- (پُـر + خُـوْ + نْ) [ فـا ، اس ، ص ، مـذ (مؤ ، وا: پُرخونـه ، ج: پرخونې) ] (۱) د وینو ډک (۲) ډېر دردېدلے ، ډېر خوږ شوے ، ډېر غمجن .

الف قـدمي خـم له باره د غم نون دے
پس له مرګه چې څیګر زما پُرخون دے معزالله خان

**پرخونګ** :- (پَ + رْ + خَ + وَ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و- پرخونه .

**پرخونـه** :- (پَ + رْ + خَ + وْ + نَـه) [ پ ، حمـص ] اوبـۀ پـه خولـۀ پـوږول یـا پُوکنونه، پرخونګ .

**پرخُوونکے** :- (پَ + رْ + خَ + وُوْ + نْ + کَے) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پرخوُونکي ج په خولۀ اوبۀ پوږ وهونکے یا پوکنوونکے .

**پرخه** :- (پَ + رْ + خَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پرخې ] (۱) شبنم ،د اوبو هغه سپین څاڅکي چې سحر وختي په ونو بوټو پراتۀ په نظر راځي (۲) نرے باران

له فلکه د افتاب وړمه پیدا شوه
د قطره په څڅېدو پرخه پیدا شوه شاه و ګدا

ـــــ **پربوټل** :- (اص) شبنم ورېدل ، سحر وختـي د اوبـو څـاڅکي پـه ونـو بوټو ښکاره کېدل .

ـــــ **ورېدل** :- (اص) د بـاران نـرې نـرې څـاڅکي پرېوتـل ، معمـولي بـاران ورېدل .

**پرخیال** :- (پَ + رْ + خْ + یا + لْ) [ اف : پ (قـاموس) ص ] پخېـل ، د بیمـار خولَې کونه ، پرخېل .

**پرخیـز** :- (پَ + رْ + خيِ + زْ) [ پ اس، ص ، مـذ (مـؤ ، وا: پرخیـزه ، ج: پرخیزې) ] فرق کوُونکے ، بې انصافه .

**پرخیل** :- (پَ + رْ + خيِ + لْ) [ اف : پ (قاموس) ص ] و ــ پرخیال

**پُردِل** :-(پُر + د+لْ) [فَا ، اس ، ص ، مذ] (۱) بهادر ، زورور ، زړۀ ور (۲) فیاض، سَخي (۳) هوښیار ، پوهه ، عقلمند (۴) د پښتنو یو عام نوم

**پُردلـي** :- (پُـر + د +لـيِ) [پ،تـر،اس، مـؤ] (۱) بهـادري ، زړۀ ورتـوب، مړنتوب (۲) فَیاضي ، سخاوت (۳) پوهه ، عقل ، هوښیارتیا

**پردو** :- (پَ + رَ + دو) [ پ ، ص ] (۱) غېرو ، د بل چا (۲) چې خپـل نـۀ وي ، چې رشته دار نۀ وي .

همېشه د خپل اشنا طلبګار اوسه
لــه پـردوله خپلو واړو بېزار اوسه معزالله خان

**پرده** :- (پَ + رْ + دَه) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پردې ] (۱) پړده ، شرم حیا ، حجاب ، ستر ، بورقـه ، ځان پټونه (۲) راز ، پټه خبره (۳) هغـه کپړه چې په دروازه یا کړکۍ اوېزانده وي .

کم ځان پټ که په اوؤ پردو دننه
د عـالم انګشت نما ده دا دنیا معزالله خان

ـــــ **اچول** :- (۱) په دروازه یا کړکۍ پړده اوېزانده ول (۲) پړده پوشي کول ، د چا راز پټ ساتل ، د چا جُرم پټول ، پرده پرې اچول ، پرده پرې غوړول .

ـــــ **اخستل** :- (اص) بې پردې کول ، شرمول ، شرم حیا اخستل ، د چا پټ راز څرګندول .

ـــــ **اوچتول** :- (اص)ي (۱) پرده ماتول ، پرده پربکول ، د پردې پابندي ختمول (۲) د دروازې یا کړکۍ نه پرده لرې کول.
ـــــ **پرې اچول** :- (اص) و ـــــ پرده اچول.
ـــــ **پرې غوړول** :- (اص) و ـــــ پرده اچول.
ـــــ **پربکول** :- (اص) پرده ماتول ، د ښځې د پردې نه راوتل ، د ښځې د غېر سړي نه پړده نهٔ کول ، پړده اوچتول.
ـــــ **پربکېدل** :- (اص) پرده ماتېدل ، د ښځې د غېر سړي نه پړده نهٔ کېدل.
ـــــ **تلل** :- (اص) بې پردې کېدل ، شرمېدل.
ـــــ **څیرل** :- (اص) (۱) پرده بڅه کول یا څیرې کول ، پرده شلول (۲) بې پردې کول، د چا پټ راز ښکاره کول ، پرده غوڅول.
ـــــ **څیرې کول** :- (اص) و ـــــ پرده څیرل.
ـــــ **څیرې کېدل** :- (اص) (۱) پرده بڅه کېدل ، پرده شلېدل ، پرده غوڅېدل (۲) د چا پټ راز ښکاره کېدل.
ـــــ **راتلل** :- (اص) پرده پاتې کېدل ، شرم حیا پاتې کېدل ، د شرمېدو نه بچ کېدل.
ـــــ **راوستل** :- (اص) پرده پوشي کول ، څوک د شرمولو نه بچ کول ، د چا راز پټ ساتل.
ـــــ **ساتل** :- (اص) شرم حیا ساتل ، عزت ساتل ، د چا راز نهٔ ښکاره کول
ـــــ **سپړدل** :- (اص) و ـــــ پرده څیرل.
ـــــ **شلول** :- (اص) و ـــــ پرده څیرل.
ـــــ **شلېدل** :- (اص) و ـــــ پرده څیرې کېدل.
ـــــ **ښکاره کول** :- (اص) و ـــــ پرده څیرل.
ـــــ **غوڅول** :- (اص) و ـــــ پرده څیرل.
ـــــ **غوڅېدل** :- (اص) و ـــــ پرده څیرې کېدل
ـــــ **کول** :- (اص) (۱) د زنانه مخ پټ ساتل (۲) د چا نه څهٔ کار په پټه کول ،چاته خپل راز نهٔ ښکاره کول (۳) د مشرانو عزت کول (۴) د چا غېر سړي په راتلو د کور د زنانهٔ یو ډډې ته کېدل.
ـــــ **کېدل** :- (اص) د غېر سړي په راتلو د کور د زناناؤ یو ډډې ته کېدل.
ـــــ **لرې کول** :- (اص) (۱) د کړکۍ یا دروازې نه پرده اوچتول (۲) پرده پربښول، د پردې ماتول (۳) شرمول ، د چا راز ښکاره کول.
ـــــ **لرې کېدل** :- (اص) (۱) د کړکۍ یا دروازې نه پرده اوچتېدل ، (۲) د پردې ماتېدل ، (۳) شرمېدل ، د چا راز ښکاره کېدل.
ـــــ **ماتول** :- (اص) و ـــــ پرده پربکول.
ـــــ **ماتېدل** :- (اص) و ـــــ پرده پربکېدل
ـــــ **نیول** :- (اص) پرده کول ، مخ پټول ،
ـــــ **ورکول** :- (اص) (۱) د ځواني جینۍ د وادهٔ کولو دپاره غوښتل (۲) ځوانه جینۍ په پرده کښې کښېنول ، د جینۍ د پردې جوګه کېدل.
**بې پرده کېدل** :- (اص) شرمېدل ، بې عزته کېدل.
**بې پردې** :- (اص) (۱) ښکاره ، څرګند ، جوت ، چې مخ ئې نهٔ وي پټ کړے. (۲) شرمېدلے ، بې عزته.
ـــــ **کول** :- (اص) (۱) څرګندول ، ښکاره کول ، جوتول (۲) شرمول ، بې عزته کول
ـــــ **کېدل** :- (اص) (۱) څرګندېدل ، ښکاره کېدل ، جوتېدل (۲) شرمېدل ، بې عزته کېدل.
**پرده پوش** :- (پرده + پو + شْ) [فا ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پرده پوشه، ج: پرده پوشې) ] پرده ساتونکے ، پرده اچوونکے ، راز نهٔ ښکاره کوونکے ، پرده دار.

تائب کړے وم ناصح نزدې له عشقه
بارې خداے شو د عشاقو پرده پوش    عبدالحمید

**پرده پوشي** :- (پرده + پو + شِيْ) [فا ، اس ، مؤ] پرده اچول ، پرده ساتل ، راز نهٔ ښکاره کول.
ـــــ **کول** :- (اص) د چا پرده ساتل ، د چا راز نهٔ ښکاره کول ، د چا د عزت خیال ساتل.
ـــــ **کېدل**:-(اص) د چا راز نهٔ ښکاره کېدل ، د چا عیب پټ پاتې کېدل ،

که تـه نـهٔ کوې نظر د چا و عیب ته
هر سړے به دې د عیبو پرده پردار شي    رحمٰن بابا

**پرده دار** :- (پرده + دا + رْ) [فا ، ص ، مذ (مؤ ، وا، پرده داره ، ج: پرده دارې) ] (۱) حیاناک ، (۲) و ـــــ پرده پوش

خداے رسول پرده در نهٔ دې پرده دار دې
چې سړے پـه دا هېئت کا د ښـو وعظ    مصري خان

**پرده در** :- (پرده + دَ + رْ) [فا ، ص ، مذ] پرده څرګندوونکے ، پرده څیرې کوونکے ، راز څرګندوونکے.
**پردے** :- (پْ + رَ + دَے) [پ ، ص ، مذ ، وا، ج: پردي ، (مؤ: پردۍ)] (۱) غېر ، چې خپل نهٔ وي. (۲) نااشنا ، بېګانه (۳) د بل چا ، چې خپل نهٔ وي.

پردي پرېږده که په قطع پلارو مور وي
د هیچا د چـاتـه مـه شه پیدا طمع    عبدالحمید
کـه هـزار خله پردے له یاره زړهٔ کړم
بیا ئې خپل کاندي په سحر په افسون    مصري خان

که څوک نـهٔ پټوي سترګې په حرامو
شي په پښو کښې پېژندے پردۍ پنه    عبدالحمید

**پردۍ بوساړې بیعه کول** :- (مح) د بل په کار کښې لاس وهل ، په پردي کور کښې ځان وکیل کول.
**پردے جنګ په بیعه اخستل** :- (مح) (۱) په پردي جنګ کښې ځان په زور ورګډول (۲) په پردي کار کښې کار لرل.
**پردۍ خوټې تلل** :- (مح) د بل چا خوشامند کول ، پردۍ خوټې جوکل ، پردۍ خوټو ته سېر وئیل.
**پردۍ خوټې جوکل** :- (مح) و ـــــ پردۍ خوټې تلل.
**پردۍ خوټو ته سېر وئیل** :- (مح) و ـــــ پردۍ خوټې تلل.
**په پردو پښو تلل** :- (مح) د بل چا په ډاډ څهٔ کار کول ، د بل په طمع کار شروع کول.
**په پردو غُلو تیز اچول** :- (مح) په پردو غُلو کښېناستل ، د بل په کار لوئي کول، د بل په بهادرۍ خپل برېتونه تاوول.
**په پردو غُلو کښېناستل** :- (مح) و ـــــ په پردو غُلو تیز اچول.
**په پردي وېر کښې خپلې کونځۍ ویستل** :- (مح) پردے غم ژړل، په پردې جنګ کښې ځان ورګډول.
**خپل پردي** :- (اص) خوېښان او غېر ، نزدې او لرې ، عزیزان او غېر
**خپل پردے کول** :- (اص) فرق کول، د پردي په مقابله کښې خپل ته فائده رسول
**خپل پردي ګنډل** :- (اص) خپل پردي سره یو کول ، په خپلو پردو کښې اتفاق راوستل.
**د پردي خبرات نه سپي شړل** :- (مح) د بل په کور کښې ځان وکیل کول ، په پردي غم ځان اخته کول.
**پردي توب** :- (پردي + تو + بْ) [پ ، اس ، مذ] پردي والے ، بېګانه توب،

د پردو په شان.

**پردی خونه** :- (پ ْ + رَ + دَ +يیْ + خُوْ + نَه ) [پ ،اس ، ص ، مؤ] پردے کور ، پردې مېنه یا مېله.

معــزالله پــه دنیــا زړهٔ کــول نشــته
په پردی خونه کښې څهٔ که مهمان وعظ

**پردی سترګي** :- (پردی + سْ + تْ +رْ + ګي ) [پ ، اس ، ص، مؤ] د بـل سترګي ، د غېر سترګي.

تسلي د یار په مخ شي پـه بل کله
په پردو سترګو کول شي لیدل کله حمید

**پردي والے** :- (پردي + وا + لَے ) [پ ، اس ، مذ] و ـ پردي توب

**پــردېس** :- (پَ + رْ + دې + سْ ) [اف : پ (قــاموس) اس ، مــذ ، وا ، ج: پردېسـان (مـؤ و وا : پردېســه ،ج : پردېســې ) ] مُســافر ، خوشـے ګرځېدونکے ، اواره.

**پــردېس** :- (پَ + رْ + دې + سْ ) [ه ، اس ، مــذ ، وا ، ج : پردېســـونه ] (۱) بل ملک، بل وطن ، (۲) مسافري.

ټپه: زهٔ په پردېس کښې عمر تاته تېروؤمه!

**پردېســـنه** :- (پَ + رْ + دې + سْ + نَــه ) [اف : پ (قــاموس) اس ، مــؤ ] پردېسوالے ، مسافري.

**پردېسوالے** :- (پردېس + وا + لَے ) [پ ، اس ،مذ] و ـــ پردېسنه.

**پردېسي** :- (پَ + رْ + دې + سِيْ ) [ه ، اس ، مذ ، وا، ج: پردېسیان] (۱) د بل ملک ، مسافر (۲) ناواقف ، نابلد (۳) مسافري، پردېسنه.

پردېسي حېران پرېشان له خلقه نهٔ شي
زهٔ پــه تا پسې جوګي شوم که مې وینې خوشحال

**پرړ** :- (پْ + رِ + ړْ ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ(مؤ ، وا: پرړه ، ج : پرړې ] پېرړ، پرېړ ، پېړ ، زیات ، کافي ، غټ.

ـــــ **کول** :- (اف) اص ـ پېړ کول ، غټول ، مضبوطول.

ـــــ **کېد**: (اف) اص ـ پېړ کېدل ، غټېدل ، مضبوطېدل.

**پرړه** :- (پ + رْ + ړَه ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پرړې] ټوقـه ، وشته ، ډوزه.

**پرړي** :- (پَ + رْ + ړِيْ ) [پ (ب، خ ) اس ، مؤ] وبا ، هېضه ،

ـــــ **وئیل** :- (ب ، خ ) اص ـ هېضه لګېدل ، په هېضې بیمارېدل.

**پرزول** :- (پَ + رْ + زَ + وْ + لْ ) [پ ، مص مت ] و ـ پرځول

**پرزولې** :- (پَ +رْ + زَ + وْ+ لَے ) [پ،مف، مذ ، وا ، ج : پرزولي] و - پرځولے

**پرزونه** :- (پَ + رْ + زَ + وْ + نَه ) [پ ، حمص] و ـــ پرځونه.

**پرزوُونکے** :- (پَ + رْ + زَ + وُوْ + نْ + کَے ) [پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : پرزوُونکي ] و ـــ پرځوُونکے.

**پُرزه** :- (پُ + رْ + زَه ) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پُرزې] ټوټه ، حصه ، ټُکړه.

**پرزېدل** :- (پَ + رْ + زې + دْ + لْ ) [پ ، مص ، لا] و ـــ پرځېدل.

**پرزېدلے** :- (پَ + رْ + زې + دْ + لَے ) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرزېدلي] و ـــ پرځېدلے.

**پرزېدنه** :- (پَ + رْ + زې + دْ + نَه ) [پ ، حمص] و ـــ پرځېدنه.

**پرزېــدُونکے** :- (پَ + رْ + زې + دُوْ + نْ + کَــے ) [پ ، مــف ، مــذ ، وا ، ج: پرزېدونکي ] و ـــ پرځېدونکے.

**پرزېدهٔ** :- (پَ + رْ + زې + دهٔ ) [پ ، حمص] و ـــ پرځېدهٔ.

**پرس** :- (پَ + رْ + سْ ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرسُونه ] د زنانـاؤ بټـوه یا بېګ چې پیسې ټکې او د هارسنګار سامان پکښې وي.

**پرستار** :- (پَ + رَ = سْ + تـا + رْ ) [فـا ، اس ، ص ، مـذ ،وا ، ج : پرسـتاران (مؤ ، وا : پرستاره ، ج : پرستارې ) ] (۱) پرستش کوُونکے ، عبـادت کوُونکے (۲) مئین ، عاشق.

**پرستان** :- (پَ + رِ + سْ + تـا + نْ ) [فـا ، اس ، مـذ] (۱) د ښـاپېرو ملـک (۲) د ښکلو خلقو داوسېدلو ځاے.

کـوم یـو بُـت دې ناست پـه زړهٔ کښـې دے حمیـده
چــې مــدام پــه پرســتش ورتــه نڅکــور ئــې

**پرستش** :- (پَ + رَ + سْ + ت + شْ ) [فا ، اس ، مذ ] (۱) عبـادت (۲)ډېـر عزت ، (۳) زیاته مینه.

ـــــ **کول** :- (اص ) (۱) عبادت کول (۲) ډېر عزت کول (۳) زیاته مینه کول

ـــــ **کېدل** :-(اص) (۱) عبادت کېدل (۲) ډېرعزت کېدل (۳) زیاته مینه کېدل

**پُرسـد** :- (پُ + رْ + سْ + دْ ) [اف : پ (قـاموس) ص ] هوښـیار ، پوهـه ، عقلمند.

ـــــ **کېدل** :- (اص ) هوښیارېدل ، پوهه کېدل ، عقل پخېدل

**پُرسـد تـوب** :- (پُرسـد + تـو + بْ ) [اف : پ (قـاموس) اس] پرسـد والـے ، هوښیار توب ، هوښیاري ، عقلمندي.

**پرسد والے** :-(پُرسد+ وا+ لَے ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ] و- پُرسد توب

**پُرسـش** :- (پُ + رْ + سِ + شْ ) [فـا ، اس ، مـذ] تپـوس ، پوښـتنه ، خبـر اخستل

هېڅ ئې اونهٔ کړهٔ پُرسش زما له حاله
یار له مانه هسې تېر په استغنا شهٔ معزالله خان

**پرسند** :- (پَ + رْ + سِ + نْ + دْ ) [پ (عـا) فـا : پسـند ، ص] خوش ، زړهٔ تـه نژدې.

**پرســنده** :- (پَ + رْ + سَ + نْ + دَه ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج: پرسندې] اوچه غوښـه ، د ژمي په موسم کښې د ګډ اوچه کړې غوښـه چې د کور خلق ئې په مزه مزه لږه لږه پخوي ، لاندي

**پرسنل**:-(پَ +رْ + سْ + نَ + لْ ) [انګ ، ص ، مذ] ذاتي ، ځا ني ، خپل

**پرسنل اسسټنټ** :- (پرسـنل + اَ + سِ + سْ + ټِ + نْ + ټْ ) [انګ، اس، مـر ، مذ] پي اے ، سکتـر ، د چا عهدېدار ذاتي معتمد

**پرسنل فائل** :- (پرسـنل + فـا + ئيْ + لْ ) [انګ ، اس ، مـر ، مـذ ، وا ، ج: پرسنل فائلونه ] د چا ملازم د تعلیم او نوکرۍ مسل ، ذاتي ریکارډ

**پرسنه** :- (پْ + رْ + سْ + نه ) [اف : پ (قاموس) اس ] د اس لد.

**پُرسـېره** :- (پُ + رْ + سې + رَه ) [اف : پ(قـاموس) ص ] (۱) برڅېـره ، پـه سېره ، ځنګځن (۱) باندې ، دپاسه.

**پــرش** :- (پَ + رْ + شْ ) [پ (عـا) ع : فـرش ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پرشُـونه پرشینه ] تلے ، فرش ، دکوټې دننه هواره حصه ، هوار ډګر.

**پرش** :- (پَ + رْ + شْ ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پـه متروکـه وهـل پـه چابک وهل ، (دې ټکې سره 'کول' استعمالېږي)

**پرش** :- (پْ + رَ + شْ ) [پ ، اس ، صو ، مذ ] (۱) د ځناورو پـه پـوزه سـاه راکښل، پرشهار (۲) پرنجے ، انتروشے ، نړے.

**پــرش** :- (پْ + رَ + شْ ) [پ (ب ، خ) اس ، مـذ ، وا ، ج : پرشونه ] ډانګـه ، پُشته، بند ، د سېلاب د اوبو د تم کولو یا د رُخ اړولو دپاره د کـاڼو نه جوړ مضبوط دېوال ، وټه.

**پرشاد** :- (پَ + رْ + شا + دْ ) [ه ، اس ، مذ] (۱) د نیـاز یـا د منښـتې حلـوا (۲) د هندوانو دنوم یوه حصه.

**پرشتیا** :- (پْ + رِ + شْ + تْ +یا ) [پ، کلمـه ] پـه رشـتیا ، پـه رښـتیا، پـه حقه ، رښتیا خو دا دي.

**پرشمې** :- (پَ + رْ + شَ + مَې) [پ (ب ،خ) اس ، مذ ، وا ، ج : پرشې] پېشمنې ، پېشنمې ، پېسمې.
**پرشه** :- (پَ + رْ + شَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پرشې] پرښه ، ښوئې يا سخت کاڼې داسې ټاړه چې هلکان دپاسه نه لاندې پرې ښوېږي
**پرشهار** :- (پَ + رْ + شَ + ها + رْ) [پ ، اس ، صوا] پرشېدل ، په يو مخ پرش پرش کول ، د پوزې نه په يو مخ اواز رايستل.
**پرشې** :- (پَ + رْ + شَې) [اف پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پرشې] دُرشل ، څېر زېړې.
**پرشي** :- (پَ + رْ + شيْ) [اف : پ (قاموس) اس] مشهور ښکلې ګل
**پرشېدل** :- (پْ + رَ + شې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] پرنجېدل ، انتروشې کول ، انړې کول ، د پوزې نه په يو مخ اواز رايستل.
**پرشېدلې** :- (پْ + رَ + شې + دْ + لَې) [پ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرشېدلي (مؤ ، پرشېدلې)] هغه څوک چې په پوزه ئې اواز رايستلې وي ، پرنجېدلې.
**پرشېدنه** :- (پْ + رَ + شې + دْ + نَه) [پ ، حمص] پرشېدۀ ، پرنجېدۀ ، انړې يا انتروشې کونه ، په پوزه اواز ايستنه.
**پرشېدُونکې** :- (پْ + رْ + شې + دُوْ + نْ + کَې) [پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پرشېدُونکي (مؤ : پرشېدُونکې] په پوزه اواز رايستونکې ، پرنجېدونکې ، انړې کوُونکې.
**پرشېدۀ** :- (پْ + رَ + شې + دۀ) [پ ، حمص] و ـ پرشېدنه.
**پرښه** :- (پَ + رْ + شَه يا خَه) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج: پرښې] و ـ پرشه.
ـــــ **کېدل** :- (اف) اص ـ کاڼې ښوئې او سختېدل ، پرشه جوړېدل.
**اوچه پرښه کېدل** :- (اف) اص (۱) اوچ کاڼې کېدل ، سخت کاڼې جوړېدل (۲) شُوم کېدل ، بخيل کېدل.
**پرغاړه** :- (پُ + رْ يا پَ + رْ + غا + ړَه) [پ ، کلمه] (۱) په غاړه ، په ذمه ، په باندې ، (۲) په غاړه کښې ، اغوستې ، اچولې.
ـــــ **کول** :- (اص) (۱) په ذمه اخستل ـ (۲) غاړې ته اچول ، اغوستل (۳) پر ورتېل ، پر وراړول ، خامخا د چا په ذمه کول.
ـــــ **کېدل** :- (اص) (۱) په ذمه کېدل ، په باندې کېدل (۲) پر ورتپلې کېدل
(۳) په غاړه کښې اچولې کېدل ، اغوستلې کېدل.
**پرغړک** :- (پَ + رْ + غَ + ړَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] داسه ډسه هغه لرګې چې د بار دمحکمتيا دپاره په رسۍ ورسره تړلې شي.
**پرغز** :- (پَ + رْ + غَ + زَ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] (۱) هغه تېز د اوسپنې غشې چې شاته ئې پرُونه يا وزر لګېدلې وي ـ او ماشومان ئې د لوبو په ډول په دېوال ولي ـ جګجګنې ، جګجګانې ، (۲) غصه ، قهر ، کاوړ (۳) هغه کېفيت يا حالت چې د چا بدن سخت شان شي ، د خولې نه ئې څګونه بهېږي او ډېر په تکليف کښې وي.
ـــــ **نيول** :- (اف) اص (۱) په چا د پرغز حالت راتلل (۲) ډېر غصه کېدل.
**پرغز توب** :- (پرغز + تو + بْ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ]
(۱) پرغزتيا ، غصه ، قهر ، کاوړ (۲) د بدن پرغز نيول.
**پرغزتيا** :- (پرغز + تْ + يا) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـ پرغزتوب
**پرغزي** :- (پَ + رْ + غَ + زيْ) [اف : پ (قاموس) ص] (۱) د غصې حالت ، غصه ناک (۲) پرغز نيولې.
**پرغو** :- (پَ + رْ + غُوْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] سرئ ، د دوؤ کسانو شريکه قُلبه.

ـــــ **کول** :- (اف) (اص) د دوؤ کسانو شريکه قُلبه کول.
ـــــ **کېدل** :- (اف) اص ـ د دوؤ کسانو شريکه قُلبه کېدل.
**پُرفرېب** :- (پُ + رْ + فَ + رې + بْ) [فا ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پرفرېبه ، ج : پُرفرېبې] د فرېب نه ډک ، دوکه باز ، دوکه مار ، دغا باز ، ټګ ، چلولې.

جفا کشه ، بداند ېشه ، افعي وشه ، څړه نېشه
پُرفرېبه ، حيله ګره ، بې وفا ټګه طراره مصري خان

**پُرفضا** :- (پُ + رْ + فَ + ضا) [فا ، اس ، ص] بارونقه ، سرسبزه ، ښکلې ، ښائسته.
**پرک** :- (پْ + رَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پرکُونه] هغه ګُونځې ګُونځې لَته چې د قميص دپاسه ګنډلې کېږي.
**پرکار** :- (پُ + رْ کا + رْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج: پُرکارونه ، پرکارينه] څرخ ، هغه آله چې غونډې دائرې پرې راکښلې کېږي پرکال.

بل مطلب ئې نشته خو هم غم د ببلتانۀ کړي
ځکه سرګردان دې همېشه پرکار د زړۀ مصري خان

**پرکال** :- (پَ + رْ + کا + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ : پرکاله]
(۱) پرکار (۲) سست ، لټ ، متيه ، مړتت (۳) خوبولې کېدو ته نژدې
ـــــ **کول** :- (اف) اص ، سستول ، ناړامه کول.
ـــــ **کېدل** :- (اف) اص ـ سستېدل ، ناړامه کېدل.
**د پرکال لوېدل** :- (اف) اص ، کمزورې کېدل ، د لاده باده وتل ، د کار نه پاتې راتلل.
**پرکالتوب** :- (پرکال + تو + بْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) سستي ، ناړامي ، پرکالتيا ، پرکال والې ، پرکالي (۲) د خوب راتلو حالت.
**پرکالتيا** :- (پرکال + تْ + يا) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] و ـ پرکالتوب
**پرکالوالې** :- (پرکال + وا + لَې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و- پرکالتوب
**پرکالول** :- (پَ + رْ + کا + لْ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت]
(۱) سستول ، لټ کول ، ناړامه کول (۲) خوب رابوول.
**پرکالونه** :- (پَ + رْ + کا + لْ + وْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص]
(۱) سستونه ، لټ کونه (۲) خوب راوستنه.
**پرکالي** :- (پَ + رْ + کا + ليْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و- پرکالتوب.
**پرکالېدل** :- (پَ + رْ + کا + لې + دْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص ، لا]
(۱) سستېدل ، لټ کېدل ، ناړامه کېدل (۲) خوب راتلو ته تيارېدل.
**پرکالېدنه** :- (پَ + رْ + کا + لې + دْ + نه) [اف : پ (قاموس ] حمص]
(۱) سستېدنه ، لټ کېدنه (۲) خوب راتلو ته تيارېدنه.
**پرکالېدونکې** :- (پَ + رْ + کا + لې + دُو + نْ + کَې) [اف : پ (قاموس) مف، مذ ، وا ، ج : پرکالېدونکي (مؤ : پرکالېدونکې]
(۱) سستېدونکې ، لټ کېدونکې (۲) خوب راتلو ته تيارېدونکې
**پرکټې** :- (پَ + رْ + کَ + ټَې) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرکټې (مؤ ، وا: پرکټۍ ، ج : پرکټيانې)] (۱) پر ګټې ، پرکېټائې ، د دوېم وادۀ په حالت کښې په مور پسې راغلې د بل پلار بچې (۲) شېطان ، بدمعاش او ورانکارې هلک.
**پرکښ** :- (پَ + رْ + کَ + شْ يا خْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] زياته راکښلې شوې لينده.
**پرکن** :- (پَ + رْ + کَ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پرکنُونه] د ببلولو بريد يا پُوله ، د حد بُرجۍ.
**پرکي** :- (پْ + رْ + کيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] ګرده ډوډۍ.
**پرکې** :- (پَ + رْ + کَې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پرکې]

پرپرک ، پتنګ ، پروانه.

**پُرکې** :- (پُ + رْ + کَې) [اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مذ] د مرغانو اواز یا غږ

**پرکښتــائي** :- (پَ + رْ + کــِ + ښــائي) [پ (ب ، خ) اس ، مــذ ، وا ، ج : پرکښتي] و ـــ پرکتیې.

**پرګانــه** :- (پَ + رْ + ګا + نَــه) [اف : پ (قـاموس) ص] خـور ، خپـور ، خـور وور ، تاش په تاش ، شن په شن.

**پرګاني** :- (پَ + رْ + ګا + نيْ) [اف : پ (قاموس) اس] د شولو بزغلې

**پرګتیې** :- (پَ + رْ + ګَ + تَیې) [اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پرګتیې] و ـــ پرکتیې.

**پرګنه** :- (پَ + رْ + ګَ + نَه) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پرګنې] (۱) خاندان ، خېل ، خپلوان ، پرګه (۲) علاقه ، جاګیر

دا همـــه زمــــا د تـــورې صدقه ده

پښتانهٔ چې پرګنې خوري سیور غال      خوشحال خان

**پرګو** :- (پُ + رْ + ګو [فا ، اس ص] (۱) هغه شاعر چې ډېر شعرونه وائي ، دریابي شاعر (۲) ډېرې خبرې کوونکے ، قړه تونے.

**پرګـول** :- (پُ + رْ + ګـو + لْ) [اف ، پ (قـاموس) اس ، مـذ] د پېغلتـوب پرده ، د بَکره توب پرده.

**پرګـه** :- (پَ + رْ + ګـَه) [پ (ب ، خ) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پرګې] بـال بـچ ، خېلخانه ، خپل خپلوان.

که سره ټولې کړې د کلي چرګې

نــهٔ واړه چرګې نهٔ د باز سترګې

نهٔ دوه سو کنبلې جُونه بې باکې

نـــهٔ یـــوه کنبــلې د پـاکې پرګې      خوشحال خان

**پرګــې** :- (پَ + رْ + ګَــې) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پرګــي] پیرګې ، د څېړۍ تخم ، د خر لنځې یا بنج تخم.

**پرل** :- (پَ + رْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] پېرل ، بوټل.

**پُرله اوښتل** :- (پُ + رْ + لـه + ا + وُ = ښْ + تَ + لْ) [اف : پ(قـاموس) مص لا] بازیګره خوړل ، خربازۍ خوړل بوډا غانبې اړول.

**پُرله باندې** :- (پُ + رْ + له + با + نْ + دې) [اف : پ (قـاموس) ص] سر پـه سر ، یو بل د پاسه.

**پر له پسې** :- (پَ + رْ + له + پَ + سې) [پ ، ص] یو بل پسې ، پـه یـو مـخ ، مسلسل ، متواتر.

**پُــر لــه پُــوري** :- (پُ + رْ + لــه + پُـوْ + رِيْ) [اف : پ (قـاموس) ص] نـزدې ، پیوست ، جُخت ، څنګ په څنګ ، درپورې.

**پُرله وهلے** :- (پُ + رْ + له + وَ + هَ + لَې) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ ، و ، ج: پُرله وهلي (مؤ : پُرله وهلې)] مضبوط ، غټ ، څورب

**پرما تما** :- (پَ + رْ + ما + تْ + ما) [س ، اس ، مذ] خدا ے.

**پرماتې** :- (پَ + رْ + ما + تې) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پرمـاتې ، (مؤ : پرمـاتې) ] مـات وزرے ، چې وزر ئې مـات وي ، چې کـونځر ئـې مات وي.

لکه پـــه لاس د هلکو کنبوزي

هسې بې قدره پر ماتې باز شوم      مصري خان

**پر مال** :- (پَ + رْ + ما + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ګونډې مال ، سرخ کوي ، د غنمو د ګنډولې غوبل.

**پرمـان** :- (پَ + رْ + مـا + نْ) [پ (عـا) اس ، مـذ ، و ، ج : پرمانُونـه] فرمـان ، حُکم.

**پرمایل**:-(پَ + رْ + ما + يْ + لْ) [پ ، مص ، مت] فرمایل ، وېنا کول

**پرمـایلے** :- (پَ + رْ + مـا + يْ + لَـې) [پ مـف ، مـذ ، و ، ج : پرمـایلي ، (مـؤ : پرمایلې)] (۱) فرمایلے ، وئیلے شوے ، وېنا کړې شوې ، (۲) فرمـائش پرماینه.

**پرماینه** :- (پَ رْ + ما + يْ + نَه) [پ ، حمص] فرمائش ، فرماینه ، وېنا کونه

**پرمایُونکے** :-(پَ + رْ + مـا + يُـوْ + نْ + کَې) [پ ، اس ، فـا ع ، مذ ، وا ، ج : پرمایُونکي (مؤ : پرمایُونکې)] فرمایُونکے ، وېنا کوونکے.

**پرمټ** :- (پَ + رْ + مَ + ټْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرمټُونه ، پرمټینه ، پرمټان] اجازت نامه ، د اجازت پروانه.

ـــــ **اخستل** :- (اص) اجازت نامه حاصلول.

ـــــ **ورکول** :- (اص) (۱) اجازت نامه ورکول (۲) اجازت ورکول.

**پرمخ** :- (پُ + رْ + یا پَ + رْ + مَ + خْ) [پ ، ص] (۱) په مخ باندې ، د شټ ضد ، (۲) وړاندې ، مخکښې (۳) ببخي ، سراسر.

ـــــ **پرېښول** :- (اص) ببخي پرېښودل ، همېشه دپاره ، لاس ترې اخستل (۲) د چا دمخه پرېښودل ، د چا د لحاظ پـه خـاطر پرېښـودل (۳) ازاد پرېښودل ، په خپله مخه پرېښودل.

ـــــ **تلل** :- (اص) وړاندې تلل. مخکښې تلل ، ترقي کول.

ـــــ **ورکېدل** :- (اص) ببخي ورکېدل ، سُکټ غائبېدل.

ـــــ **وهل** :- (اص) (۱) په مخ پـه څپېړه یـا سُوک وهـل (۲) وړانـدې بوتلـل (۳) واپس کول ، د بې عزتۍ په ډول څیز نهٔ قبلول (۴) په یـو مـخ وېنـا کول.

**پرمختوب** :- (پرمخ + تو + بْ) [پ ، اس ، مذ] پرمختیا ، پرمختګ ، پرمخ یُون ، وړاندې تګ ، ترقي.

**پرمختیا** :- (پرمخ + تْ + یا) [پ ، اس ، مؤ] (و ـــ پرمختوب)

**پرمخ تګ** :- (پرمخ + تَ + ګْ) [پ ، اس ، مذ] و ـــ پرمخ توب

**پرمخ یُون** :- (پرمخ + یُوْ + نْ) [پ ، اس ، مذ] و ـــ پرمختوب

**پُر مغز** :- (پُ + رْ + مَ + غَ + زْ) [فا ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا : پُرمغزه ، ج : پرمغزي)] (۱) هوښیار ، عقلمند ، ځیرک ، (۲) هغه مضمون وغېـره چې د کار د خبرو نه ډک وي.

**پُر ملال** :- (پُ + رْ + مَ + لا + لْ) [فا ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا : پُرملالـه ج: پُر ملالې) ج د ملال نه ډک ، رنجیده ، خفه.

**پرمېخـې** :- (پَ + رْ + مـې + خـيْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] ترهـور خوب ، ترهېدلے خوب ، ګډوډ خوب

ـــــ **وړل** :- (اف) اص. خوب تښتول ، خوب ګډ وډ کول.

**پرمېړه** :- (پَ + رْ + م + ړَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: پرمېړې] پوشکۍ ، پربړه ، خرمبړۍ ، مرخبړۍ

**پرمیښـۍ** :- (پَ + رْ + مـيْ + شـۍ یـا خـۍ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] څربه غوا ، تیاره غوا ، په غوښنه غوا.

**پرنـا** :- (پَ + رْ + نـا) [پ ، ص] (۱) نشـه ، خُمـار ، د خـوب راتلـو حالـت (۲) فکر مند (۳) حېران.

در حلت په وخت به وینې شي لاسن به مړي

غــــافـــــل سترګي غـــــړه وه وړې پرناوې      مصري خان

ـــــ **کېدل** :- (اص) په خُمار کښې کېدل ، نشه کېدل.

ـــــ **وړل** :- (اص) (۱) نشه کېدل (۲) فکرمند کېدل.

**پرنالــه** :- (پَ + رْ + نـا + لَــه) [پ (ګـن) ، ه : پرنـالا ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پرنالې] ترۍ ، ناوه ، د مکان د چت نه د اوبو د راښهېدو لار.

**پرنټ** :- (پْ + رِ + نْ + ټْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرنټونه] (۱) چاپ ، (۲) نخښه.

**پرنټر** :- (پْ + رِ + نْ + ټَ + رْ) [ انګ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پرنټران ] چاپ کوونکے ، پبلشر.

**پرنټنګ**:- (پْ + رِ + نْ + ټِ + نْ + ګْ) [ انګ ، اس ، مذ ] د چاپ کار

**پـرنج** :- (پِ + رَ + نْ + جْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پرنجونـه ] د انګور قلم.

**پرنج** :- (پْ + رَ + نْ + جْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مذ ] پرش ، پرنځ ، پرنجے ، انتروشے ، انړے.

**پرنجل** :- (پْ + رَ + نْ + جَ + لْ) [ پ ، مص مت ] پرنجېدل ، پرنجے کـول ، انړے کول ، انتروشے کول ، پرنځل.

**پرنجول** :- (پْ + رَ + نْ + جَ + وْ + لْ) [ مص مت ] پرنجے وروستل ، پرنځول

**پنجولے** :- (پْ + رَ + نْ + جَ + وْ + لَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرنجولي ( مؤ : پرنجولې) ] پرنجے وروستلے.

**پرنجونـګ**:- (پْ + رَ + نْ + جَ + وْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قـاموس) حمـص ] و ــــ پرنجونه.

**پرنجونـه** :- (پْ + رَ + نْ + جَ + وْ + نَه) [ پ ، حمص ] پرنجونګ ، پـرنجے وروستنه.

**پرنجوُونکے** :- (پْ + رَ + نْ + جَ + وُوْ + نْ + کَے) [ پ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پرنجوُونکي ( مؤ : پرنجوُونکې) ] وروستونکے.

**پرنجـے** :- (پْ + رَ + نْ + جَـے) [ پ (ب ، خ) اس ، مـذ ، وا ، ج : پرنجـي ] پْرنج ، پْرش ، پرنځ ، انترُوشے ، انړے ، پرنځے.

**پرنجېـدل** :- (پْ + رَ + نْ + جـې + دْ + لْ) [ پ (ب ، خ) مـص ، لا ] پـرنجے کول ، انتروشے کول ، انړے کول ، پرنځېدل.

**پرنجېدلے** :- (پْ + رَ + نْ + جې + دْ + لَے) [ پ (ب ، خ) مف ، مذ ، وا ، ج : پرنجبدلي ، ( مؤ : پرنجبدلې ] چې پرنجې ئې کړې وي.

**پرنجېدنګ** :- (پْ + رَ + نْ + جې + دْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ــــ پرنجېدنه.

**پرنجېدنه** :- (پْ + رَ + نْ + جې + دْ + نَه) [ پ (ب ، خ) حمص ] پرنجے کونـه ، پرنجېدهٔ ، پرنجېدنګ.

**پرنجېدُونکے**:-(پْ + رَ + نْ + جې + دُوْ + نْ + کَے) [ پ (ب، خ) اس ، فـا ع ، مذ ، وا ، ج : پرنجېدونکي (مؤ : پرنجېدونکې) ] پرنجے کوونکے.

**پرنجېدهٔ**:-(پْ + رَ + نْ + جې + دهٔ) [ پ (ب، خ) حمص ] و ــ پرنجېدنه

**پرنځ** :- (پْ + رَ + نْ +دْزْ) [ اف : پ (قاموس) اس ،صو، مذ ] و ــ پرنج

**پرنځل**:-(پْ + رَ + نْ + دْزَ+لْ) [ اف: پ (قاموس) مص مت ] و ــ پرنجل

**پرنځول** :- (پْ + رَ + نْ + دْزَ + وْ + لْ) [ اف : پ (قـاموس) مص مت ] و ــــ پرنجول

**پرنځـــے** :- (پْ + رَ + نْ + دْزَے) [ اف : پ (قــاموس) اس ، مــذ ، وا ، ج : پرنځي ] و ــ پرنجې

**پرنځېدل** :- (پْ + رَ + نْ + دْزَے + دْ + لْ) [ اف : پ (قـاموس) مـص لا ] و ــــ پرنجېدل.

**پرند** :- (پَ + رَ + نْ + دْ) [ پ ، اس ] ځادر ، پرونے ، ريښمينه کپړه

ځان ته ځله معزالله متقي وائي

چې پــه مېــو الـــوده لري پرند　　　معزالله خان

**پرنډ** :- (پْ + رْ + نْ +ډْ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ (مؤ ، وا : پرنډه ، ج : پرنـډې) ] (۱) پـرڼ ، پـرم ، تروهٔ پئى ، ورانې شوې شودهٔ (۲) ژوره (۳) پرته وينه ، کلکه وينه ، موره وينه.

**ــــــ کول** :- (اف) اص ، (۱) پئـى ورانول ، پئى تُرشول ، (۲) وينـه مـوره کول.

**ــــــ کېدل** :- (اف) اص ـ (۱) پئى ورانېدل ، پئى ترشېدل (۲) وينـه مـوره کېدل

**پرنـډتوب** :- (پرنـډ + تـو + بْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ] پرنـډتيا پرنډوالے ، د وينې يا د پيو موره کېدنه.

**پرنډيا** :- (پرنډ + تْ + يا) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ ] و ــ پرنډتوب

**پرنډ والے** :- (پرنډ + وا + لَـے) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مذ ]و ــــــ پرنډ توب.

**پرنډول** :- (پْ + رْ + نْ + ډَ + وْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مـص مت ] پئـى يـا وينه موره کول.

**پرنډونـه** :- (پْ + رْ + نْ + ډَ + وْ + نَـه) [ اف : پ (قـاموس) حمـص ] پـى يـا وينه موره کونه.

**پرنـډوُونکـ**ے :- (پْ + رْ + نْ + ډَ + وُوْ + نْ + کَـے) [ اف : پ (قـاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پرنډوونکي ( مؤ : پرنډوُونکې ] پى يا وينه مـوره کوونکې.

**پرنډېدل** :- (پْ + رْ + نْ + ډې + دْ + لْ) [ اف : پ (قـاموس) مص لا ] پى يا وينه موره کېدل.

**پرنډېدنـــه** :- (پْ + رْ + نْ + ډې + دْ +نَـــه) [ اف : پ (قـــاموس) حمـــص ] پرنډېدهٔ ، پى يا وينه موره کېدنه.

**پرنډېدُونکے** :- (پْ + رْ + نْ + ډې + دُوْ +نْ + کَے) [ اف : پ (قـاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پرنډېدُونکي ، ( مؤ : پرنډېدونکې ) ] پى يـا وينـه مـوره کېدونکے.

**پرنډېدهٔ** :- (پْ + رْ + نْ + ډې + دهٔ) [اف : پ (قاموس) حمص]و- پرنډېدنه

**پـرڼ** :- (پْ + رْ + ڼْ) [ اف : پ (قـاموس) ص ،مـذ ، (مـؤ ، وا : پرڼـه ، ج : پرڼې) ] و ــ پرنډ.

**پرڼي**:-(پْ + رْ + نْ + نِي) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] فرني ، پيرني ، پيرني ، د پئيو ، چينو او پوډرو نه جوړاتوب.

**پرنے** :- (پَ + رْ + نے) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ] يـو غونـد شـان خړ رنګے بوټے چې نيم ګز قد راوچتېږي.ـسسے.

**پرنس** :-(پْ + رِ + نْ + سْ) [ انګ ، اس ، مذ ] شهزاده ، د بادشاه زوے

**پرنســـپل** :- (پْ + رِ + نْ + سِ + پَ + لْ) [ انـــګ ، اس ، مـــذ ، وا ، ج : پرنسپلان ، پرنسـپلون (مـؤ ، وا : پرنسپله ، ج : پرنسپلې) ] د کـالج رئيس ، د کالج مشر اُستاد چې د انتظام چلولو ذمه وار وي.

**پُرنعمت** :- (پُ + رْ + نِ + عْ + مَ + تْ) [ اف تر ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پُرنعمتـه ) ] نوجن ، لوند ، د اوښکو نه ډکې (سترګې)

**پُر نور** :- (پُر + نُوْ + رْ) [ فا تر ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پُر نوره ، ج : پُر نورې) ] (۱) د نـور نـه ډک ، روښـانه ، ځلېـدونکے ، نـوراني .(۲) د کمـال خاوند ، د ښهٔ بصيرت خاوند (عموماً حضور سره يو ځاے راځي).

ستا د مخــه چې رببار راته مذکور کړ

دا له غمه تاريک زړه مې ئې پُر نور کړ　　مصري خان

**پـرو** :- (پَ + رُوْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ] تـود بـاد ، ګـرم بـاد ، سوځوُونکے باد يا ابشمه.

**پرو** :- (پُ + رُوْ) [ اف : پ (قاموس) ص ] بېهوده ، پـه خپـل سر ، فضـول ، اواره

**پـروا** :- (پَ + رْ + وا) [ فـا ، اس ، مـذ ] (۱) خيـال ، فکـر ، لحـاظ ، خـاطر (۲) ډار ، يره ، غم ، باک

هســې مســت ئــې پــه دنيـا

چــې پــروا نــهٔ کــړې پــه چـا

ملامت د هر چا وړه په عاشقۍ کښې
د مست اوښ نۀ وي پروا له درانۀ باره معزالله خان

ـــــ **ساتل** :- (اص) پروا کول ، خيال ساتل ، فکر او پام لرل ، پروا لرل

ـــــ **کول** :- (اص) و ـــــ پروا ساتل.

ـــــ **کېدل** :- (اص) خيال لرلے کېدل ، فکر ساتلے کېدل ، پام کېدل.

ـــــ **لرل** :- (اص) و ـــــ پروا ساتل.

**پروا دار** :- (پروا + دا + رْ) [ فا تر ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پروا داره ، ج: پروا داري] (۱) پروا کوونکے ، خيال ساتونکے . (۲) فکر کوونکے ، يرېدونکے.

و هغه ته سړے مه وايه غاروے دے
چې پـه چـارو د دين نۀ وي پرداداره مصري خان

**پرواز** :- (پَ + رْ + وا + زْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج: پروازونه ] الوت، ورتنه.

و گلرخ تـه د پـرواز پـه نيت بلبله
په قفس کښې مې د تن د روح خفه ده معزالله خان

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) الوتل ، پاس ختل (۲) فکر زغلول.

ـــــ **کېدل** :- (اص) الوتلے کېدلے.

**پروانه** :- (پَ + رْ + وا + نَه) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج: پرواني] (۱) پتنګ (۲) اجازت نامه ، فرمان ، حکمنامه (۳) عاشق ، په غم کښې جلبل.

تـاروګے د عشق له سوزه څۀ خبر دے
په چراغ باندې چې سوځي پروا نۀ دے مصري خان
چې روښانه پرې زما د زړۀ چراغ دے
څـکه ستا د مخ په شمع پرواه نۀ يم معزالله خان

ـــــ **اخستل** :- (ا) اجازت نامه اخستل ، راهداري اخستل.

ـــــ **جوړول** :- (اص) اجازت نامه تيارول.

ـــــ **ورکول** :- (اص) اجازت نامه ورکول ، راهداري ورکول.

**پروبال** :- (پَ + رو + بات + لْ) [ فا تر ، اس ] وزر ، کونځر ، کمځر

ګلستان زمـا د نظم شګفته شۀ
پرې وهي شيدا بلبل خپل پروبال خوشحال

**پروبېشـن** :- (پْ + رو + بې + شَ + نْ) [ انـګ ، اس ، مـذ ] (۱) ازمائښـې (۲) د کم عمره مجرمانو د جېل نه د رهايۍ طريقه ، چې هغوي د چا ذمه وار افسر په نګرانۍ کښې دنېک چلنې ژوند تېروي.

**پروبېشنر** :- (پْ + رو + بې + شْ + نَ + رْ) [ انګ ، اس ، مذ ] امېدوار ، مُبتدي

**پـرو پرائټر** :- (پْ + رو + پْ + رائي + ټَ + رْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پروپرائټران (مؤ وا: پروپرائټره ، ج: پروپرائټرې) ] مالک ، انتظام چلوونکے ، څښتن.

**پروپوزل** :- (پْ + رو + پو + زَ + لْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پروپوزلونه ] تجويز.

**پروپېسر** :- (پْ + رو + پې + سَ + رْ) [ پ (ما) انګ ، پروفېسر ، اس ، مذ ، وا ، ج: پروپېسـران ، پروپېسـرون (مـؤ ، وا: پروپېسـره ، ج: پروپېسرې) ] د کالج اُستاد

**پروپېګنـډا** :- (پ + رو + پـې + ګَ + نْ + ډا) [ انـګ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج: پروپېګنډې ] و ـــــ پراپېګنډه.

**پروت** :- (پْ + رو + تْ) [ پ ، ص ، مذ ،وا ، ج: پراتۀ ، (مؤ ، وا: پرته ، ج: پرتې) ] (۱) غزېدلے ، ملاست (۲) اېښے (۳) بې کاره ، ناړامه ، بې وجهې ، سست (۴) موجود ، په کښې.

و کفن ته به صبا محتاجه پروت ئې
نـن چې اغـوندې لباس په تکلف معزالله خان
دا ئې لونګين دے چې ئې پاس په وينه پروت دے
يـادے جـار وتـلے تـر اصلي چندڼ ښامار مصري خان
هر صدف کښې کله پروت دُريتم دي
نـۀ مـايـه لـري د فقر هر فقير معزالله خان

**پروتـې** :- (پَ + رْ + وْ + تـې) [ پ (ب، خ) اس ، مـؤ ، وا ، ج ] پرېـوتکے زېلانګے ، هغه بوټي چې په ونو او برانډو پاس خېژي.

**پروتوالے** :- (پروت + وا + لَے) [ پ ، اس ، مذ ] ملاستے ، غزېدنه

**پـروټ** :- (پَ + رْ + وَ + ټْ) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، (مـؤ ، وا ، پروټـه ، ج: پروټې) ] غټ سړے ، څورب ، پهلوان ،د مضبوطې تنې خاوند

مورزادي بلا پروټ يم
چې بلا هـورې مې کور خوشحال

ـــــ **کېدل** :- (اف) اص ، غټېدل ، څربېدل.

**پروټ توب** :- (پروټ + تو + بْ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ ] پروټ والے ، غټ والے ، څورب والے ، پهلواني.

**پروټ والے** :- (پروټ + وا + لے) [ اف: پ (قـاموس) اس ، مذ ]و ـــــ پروټ توب.

**پـر ورتلـل** :- (پَ + رْ + وَ + رْ + تْ + لَ + لْ) [ پ ، مص تر ] پـه ورتلـل ، پـه ورختل ، حمله پرې کول.

**پروټېسـټ** :- (پ + رو + ټ + سْ + ټ) [ انـګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: پروټېسټونه ] احتجاج ، د ناراضګۍ اظهار ، خفګان ظاهرونه

**پروردګار** :- (پَ + رْ + وَ + رْ + دِ + ګا + رْ) [ اف ، اس ، مذ ] پالونکے ، رب، خدا ے تعالیٰ.

مينې هسې پـرورده کړې
احمده لکه طفل له رغوث احمد شاه

**پرورده** :- (پَ + رْ + وَ + رْ + دَه) [ فا ، اس ] پاللے ، ساتلے ، لوے کړے ، پرورش کړے.

**پرورش**:-(پَ +رْ + وَ + رِ + شْ) [ فا ، اس ، مذ ] پالنه ، ساتنه ، لويونه

سر سينه وهې پـه څـۀ بـلا ئې پرورش کړې
دين ايمان دې هېر شي کړې د دوي نګهباني مصري خان

ـــــ **کول** :- (اص) پالل ، ساتنه کول ، لويول.

ـــــ **کېدل** :- (اص) پالنه کېدل ، ساتنه کېدل ، پرورش موندل.

ـــــ **موندل** :- (اص) و ـــــ پرورش کېدل.

**پـروړ** :- (پْ + رو + ړْ) [ اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: پروړونـه] پروړه ، بُوس ، پُوړ ، پروړې ، پلاله.

**پـروړ والـه** :- (پـروړ + وا + لَـه) [ اف: پ (قـاموس) اس ، ص ] پـروړ خرڅوونکے ، بُوس يا پروړې خرڅوونکے.

**پـروړه** :-(پ + رو + ړَه) [ اف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج: پـروړې] درويشته ، د شولو هغه بُوس چې ښۀ مېده شوے نۀ وي ، پروړ

**پروړې** :- (پ + رو + ړې) [ پ (ګن) اس ، مؤ] و ـــــ پروړ

**پروزې** :- (پَ + رْ + وْ + زَې) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پروزي ] پروبزے ، چاڼ ، چڼوُلے ، غلبېل.

**پروستڼ** :- (پَ + رُوْ + سْ + تْ + نْ + ړْ) [ اف: پ (قاموس) ص ، مذ وا ، (مؤ ، وا: پروستنيه ، ج: پروستنيې) ] پروسږن ، د پروسږ کال د تېر کال ، د پروشژ کال ، پرسږنے ، پروسکلن ، پروسکلنے ، پروسکنے ، پرهوسږلے.

**پروسړ** :- (پَ + رو + سَ + ړ یا ګ) [پ ، ص ، مذ ، وا (مؤ ، وا: پروسړنه، ج : پروسړنې)] تېر کال، ږومبے کال، پروسړ کال، پروسکال، پرهوسړ
**ـــــ کال** :- (اص) و ـــــ پروسړ.
**پروسړن** :- (پَ + رو + سَ + ړَ + ن یا ګَ + نْ) [پ ، ص ، مذ ، (مؤ، وا: پروسړنه، ج : پروسړنې)] و ـــــ پروستې.
**پروسړنے** :- (پَ + رو + سَ + ړَ + نَے یا ګَ + نَے) [پ ، ص ، مذ (مؤ: پروسړنۍ)] و ـــــ پروستنے
**پروسکال** :- (پَ + رو + سْ + کا + ل) [پ ، ص ، مذ ، وا] و ـ پروسړ
**پروسکلن** :- (پ + رو + سْ + کَ + لَ + نْ) [پ ، ص ، مذ] و ـ پروستې
**پروسکلنے** :- (پَ + رو + سْ + کَ + لَ + نَے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج: پروسکلني (مؤ : روسکلنۍ)] و ـــ پروستې.
**پروسکنے** :- (پَ +رو +سْ + کَ +نَے) [پ، ص، مذ: پروسکنۍ] و- پروستې
**پروسېشـــن** :- (پْ + رو + ســې + شَ + نْ) [انـګ ، اس ، مــذ ، وا ، ج : پروسېشنونه] جلوس
**پروشژ** :- (پَ + رو + شَ + ژْ) [پ (ب ، خ) ص ، مذ] و ـ پروسړ
**پروشـــژن** :- (پَ + رو + شَ + ژَ + نْ) [پ (ب، خ، ص ، مــذ (مــؤ ،وا: پروشژنه ، ج : پروشژنې)] و ـــ پروستې.
**پروشـــژنې** :- (پَ + رو + شَ + ژَ + نــې) [پ (ب، خ، ص ، مــذ ، وا ، ج: پروشژني (مؤ : روشژنۍ)] و ـــ پروسړنے.
**پـروف** :- (پْ + رُوْ + فْ) [انـګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پروفونـه] خاکـه، مسوده ، په پرېس یا چاپه خانه کښې اول چاپ شوے کاغذ چې د اصلاح دپاره ښودلے کېږي.
**پـروف ریـډر** :- (پـروف + رِيْ + ډَ + رْ) [انـګ ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج: پروف ریډران] د مسوده اصلاح کوونکے ، مسوده لوستونکے .
**پـروف ریـډنګ** :- (پـروف + رِيْ + ډِ + نْ + ګْ) [انګ ، اس ، مذ] مسوده لوستل، د چاپ خانې په مسوده کښې اصلاح کول.
**پروفېســر** :- (پْ + هــرو + فــې + سَ + رْ) [انـګ ، اس ، مــذ ، وا ، ج : پروفېسـران ، پروفېسـرون (مـؤ ، وا: پروفېسـره ،ج: پروفېسـرې)] د کالج استاذ ، پروېپسر
**پروقار** :- (پُ + رْ + وَ + قا + رْ) [فا تر ، ص ، مذ(مؤ ، وا: پروقاره ، ج: پروقارې)] د وقار نه ډک ، درونډ ، عزتمند .
**پروګرام** :- (پْ +رو+ ګْ +را+مْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پروګرامونه ، پروګرامینـه] پلوګرام ، پروګرام ، ترتیب ، سلسله چل ، د څهٔ کار کولو طریقه ، بندوبست.
**ـــــ اېښول** :- (اص) پروګرام جوړول ، د څهٔ کار کولو دپاره نېټه مقررول ، پروګرام تیارول ، پروګرام کښېښول.
**ـــــ تیارول** :- (اص) و ـــــ پروګرام اېښول.
**ـــــ جوړول** :- (اص) و ـــــ پروګرام اېښول.
**ـــــ کښېښول** :- (اص) و ـــــ پروګرام اېښول.
**په پروګرام تلل** :- (اص) په ټاکلې شوې مصلحت څهٔ ځاے ته تلل
**پـرول** :- (پَ + رَ + وْ + لْ) [پ ، مص مت] (۱) زغلول ، منډه ورکول په دربه کول (۲) پارول ، څهٔ کار ته ځوک تیارول (۳) څهٔ څیز د غلا په ډول تښتول.
**پرولے** :- (پَ + رَ + وْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرولي ، (مؤ ، پرولې)] (۱) زغلولے ، په منډه کړے (۲) د غلا په ډول تښتولے
**پـرول دودے** :- (پْ + رو + ل + دو + دْ ے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] دلالي ، کمېشن

**پرولل** :- (پْ + رو + لْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] پلورل ، خرڅول
**پرولله** :- (پْ + رو + لْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: پروللي ، مؤ: پروللې)] پلورلے ، خرڅ کړے .
**پرولونکے** :- (پْ + رو + لُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، فـا ع مـذ ، وا ، ج : پرولُونکي (مؤ : پرولونکې)] پلورونکے ، خرڅوونکے
**پرومبه** :- (پْ + رو + مْ + بَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د ماستو شنې اوبهٔ ، پېټ.
**پروموشـــن** :- (پْ + رو + مـــو + شَ + نْ) [انــګ ، اس ، مــذ ، وا ، ج: پروموشنونه] (۱) ترقي ، د عهدې زیـاتوالے (۲) پـه امتحـان کښې پاس کېدنه.
**پرون** :-(پَ + رُوْ + نْ) [پ ، اس ، مذ] تېره ورځ ، ږومبۍ ورځ ، پرین

زهٔ خـــو نن لا په حیا شرم ممتاز شوم
چې بې شرمه دے و ماته پرون اووې      مصري خان

**پرونوټ** :- (پْ + رو + نـو + ټْ) [انګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پرونوټونـه] د قرضې رسید ، د پور لیکلې اقرارنامه. پرنوټ
**ـــــ اخستل** :- (اص) (۱) د قرضـې لـیکلے رسید اخسـتل (۲) وعـده اخستل ، اقرار اخستل.
**ـــــ چلول** :- اص . د قرضې لیکلے رسید په عدالت کښې د چا خلاف استعمالول
**ـــــ لیکل** :- (اص) د قرضې رسید لیکل ، اقرار نامه لیکل.
**ـــــ ورکول** :- (اص) د قرضې رسید ورکول ، اقرار نامه ورکول.
**پرونه** :- (پَ + رَ + وْ + نَه) پ ، حمص] (۱) زغلونه ، په منډه کونه (۲) د غلا په ډول تښتونه.
**پرونے** :- (پَ + رُو + نَے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : پروني (مؤ : پرونۍ)] (۱) پرون ورځ ، تېره ورځ ، ږومبه ورځ (۲) د تېرې ورځې سره تعلق لرونکے.
**پرוונکے** :- (پَ + رَ + وُو + نْ + کَے) [پ ، اس فـا ع ، مــذ ، وا ، ج : پروُونکي (مـؤ : پروُونکې)] (۱) زغلـوُونکے ، پـه منـډه کوونکے (۲) د غلا په ډول تښتوونکے.
**پروېـز** :- (پَ + رْ + وې + زْ) [فـا ، اس ، معـر ، مـذ] د ایـران د بادشـاه د خسرو لقب (۲) یو عام نوم.

چـې پــــه لاړ د رحېـل راغے روا رو
څهٔ کسرٰی او څهٔ پروېز او څهٔ خسرو      خوشحال خان

**پروېـــزے** :- (پَ + رْ + وے + زے) [پ ، اس ، مــذ ، وا ، ج : پروېـزي] پروزے ، چڼوونے ، غلبېل.
متل: پروېزې کوزې ته وئیل چې تا کښې دوه سورې دي .
**پــروین** :- (پَ + رْ + وِيْ +نْ) [فـا ، اس ،مـؤ] (۱) پریمنــې ، پېرُونــه ، پرېوُونے ، پرونے ، د اُوو ستورو ځومبک چې د هغو سره نزدې تلې نومې ستورې هم وي. اووهٔ خویندې (۲) د زنانهٔ یو نوم.
**پره** :- (پَ + رَه) (۱) د میچنې د څرخ یا پل یا د ارې غابنې (۲) د غرهٔ تېره څوکه (۳) پلو ، مخه ، طرف (۴) جنګ ، جګړه (۵) د بېوزې یـا پکې وزر.
**ـــــ کول** :- (اص) طرفداري کول ، د چا په پره جنبه اودرېدل ، مرسته کول ، (۲) تښتول ، لره ول ، په مخه کول یا په مخه اخستل.
**ـــــ وړل** :- (ب ، خ) اص . د فصل یا د وښو په لو کښې خپله مخه وړل، یا په خپله مخه لو کول.
**په پره اودرېدل** :- (اص) و ـــــ پره کول.

**په پره تلل** :- (اص) په يو مخه تلل ، په يو قطار کښې مخ په وړاندې تلل.
**راپره کول** :- (اص) لټول ، په مخه اخستل ، کتل راکتل.
**راپره کېدل** :- (اص) (۱) پـه مخـه راتلـل ، يـا راخلاصـېدل (۲) چاتـه يـو ځاے کېدل د چا دپاره اتفاق کول.
**پره** :- (پَ + رَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] تفتيش ، لټون.
ـــــ **کول** :- (اف) اص ، تفتيش کول، لټون کول.
**پرها خوا** :- (پَ + رْ + ها + خوا) [پ ، ص] پر هغه خوا ، په هغې لوري ، په هغه مخه ، په هغه طرف ،
**پرهار** :- (پَ + رْ + ها + رْ) [پ ، اس ،مذ ، و ، ج : پرهارونه] پرهر ، زخم ، ټپ ، پرار

چې په تيغ د بېلتانهٔ سره څوک غوڅ شي
وازه خُـولـهٔ لکه ماهے ئې هر پرهار شي    معزالله خان

ـــــ **بانـدې پرهـار** :- (اص) زخـم دپاسـه زخـم ، يـو تکليـف دپاسـه بـل تکليف، زيات کړان.
ـــــ **پکښې جوړول** :- (اص) زخمي کول ، ژوبل کول.
ـــــ **جوړول** :- (اص) (۱) زخمي کول ، ژوبل کول (۲) څهٔ دوائي يا ملهم د پرهار ښهٔ کول.
ـــــ **جوړېدل**:-(اص) (۱) زخمي کېدل ، ژوبـل کېـدل (۲) پـه څهٔ دوائـي يـا ملهم د پرهار ښهٔ کېدل ، پرهار ډکېدل ، پرهار روغېدل
ـــــ **ډکول** :- (اص) په پرهار کښې باتي. کښېښودل.
ـــــ **ډکېدل** :- (اص) (۱) پـه پرهار کښـې باتي. کښېښـولے کېـدل ، (۲) د جوړېدو يا ښهٔ کېدو په حالت کښې د پرهار غوښه نيول.پرهار رغېدل.
ـــــ **رغېدل** :- (اص) پرهار جوړېدل.
ـــــ **ګنډل** :- (اص) زخم ګنډل ، د ژوبل ځاے خولهٔ پـه تـار سـره يـو ځـاے کول، پټۍ لګول.
**په پرهار اور بلېدل** :- (اص) پرهر زيات خوږېدل ، زيات دردېدل او کړېدل
**په پرهار باندې مالګه دوړَول** :- (مح) زيـات تکليـف رسـول ، پـه څهٔ خبره د چا درد او تکليف زياتول ، په پرهار باندې نمک دُوړول.
**په پرهار باندې نمک دُوړَول** :- (مح) و ــ په پرهار باندې مالګه دُوړَول.
**پـه پرهـار ملهـم کښېښـودل** :- (مـح) (۱) پـه پرهـار يـا زخـم پټـۍ لګـول (۲) طبع تسلي کول ، د خوږ زړهٔ خيال ساتل.
**پرهار پاڼه** :- (پَ + رْ + ها + رْ + پا + ڼَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ، وا، ج : پرهار پاڼې] بارتنګ ، د يو بوټي پاڼه .
**پرهـار تـون** :- (پرهـار + تُـوْ + نْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: پرهارتونونه] د اپرېشن ځـاے ، د عـلاج پـه ډول د بـدن د اندامونو د ځيرلو پرېکولو ځاے ، اپرېشن تهېټر.
**پرهار زهٔ** :- (پرهار + زهٔ) [اف : پ (قاموس) اص] زخمي ، ژوبـل ، پرهـار ژلے.
ـــــ **کول** :- (اف) اص ، زخمي کېدل ، ژوبلېدل.
**پرهار ژلے** :- (پرهـار + ژْ + لَے يـا ځْ + لَے) [پ ، اس ، مـذ، وا ، ج : پرهـار ژلي ، (مؤ : پرهـارژلې)] (۱) زخمـي ، ژوبـل ، پرهـار زهٔ (۲) پـه زړهٔ غمجن ، مئين ، عاشق
**پرهار ژن** :- (پرهـار + ژَ + نْ يا ځَ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مـذ (مؤ ، وا: پرهار ژنه ، ج : پرهار ژنې)] و ـــ پرهار ژلے.
**پرهارنه**:- (پَ + رْ + ها + رْ + نَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] جراحي ، د پرهار د ځيرلو ، پرېکولو کار.
**پرهـارے** :-(پَ + رْ + هـا + رَے) [اف : پ (قـاموس) فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: پرهاريـان ، (مـؤ ، وا: پرهـارۍ ، ج : پرهاريـانې)] جـراح ، د بـدن د اندامونو د علاج په ډول د ځيرلو پرېکولو کار کوونکے.
**پرهاري** :- (پَ + رْ + ها + رِيْ) [اف : پ (قاموس) ص] زخمي ، پرهـارژن ، پرهار ژنے.
**پره جنبه** :- (پـره + جَ + نْ + بَـه) [پ ، تـر ، اس ، مـؤ ، وا ، ج: پـرې جنبې] ډله ، پارټي بازي.
ـــــ **کـول** :- (اص) پـارټي بـازي کـول ، د خپلـې پـارټي دپـاره هـره جـائزه ناجايزه کول
**پره دار** :-(پَ + رَه + دا + رْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پـره داران، (مـو ، وا: پره داره ، ج : پره دارې)] ملګرے ، مل ، مرستيال.
**پرهر** :- (پَ + رْ + هَ + رْ) [پ اس ، مذ ، وا ، ج : پرهرونه] و ـــ پرهار

د وصـــال طبيـــه راشه ملهم کښېږده
د هجران د تېر خوناب مې تر پرهر ځي    مصري خان

**پر هغه خوا** :- (پَ + رْ + هَ + غه + خوا) [پ ، ص] و ـــ پرهار خوا
**پُر هنر** :- (پُ + رْ + هُ + نَ + رْ) [فا تر ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا، پُرهنـره، ج: پـر هنرې)] هنرمند ، د هنر نه ډک ، کاريګر ، لائق ، پوهه
**پرهوسږ** :- (پَ + رْ + هو + سَ + ږ يا سَ + ګْ) [اف : پ (قاموس) و -پروسږ
**پرهو سږنے** :- (پَ + رْ + هو + سَ + ږَ + نَے يا ګَ + نَے) [اف : پ (قـاموس) ص ، مذ ، وا ، ج : پرهوسږني (مؤ : پرهوسږنۍ)] و -پروستې
**پرهے** :- (پَ + رَ + هَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] جبل ، د اوسپنې نـه جوړه هغه مضبوطه ډنډه چې په کاڼو کښې سوري پرې کولے شي.
**پرهېز** :- (پَ + رْ + هې + زْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرهېزونه ، پرهېزينـه] ځان ساتنه ، احتياط ، خيال (کونه) پرېز.

چې دا هسې پـه پالـنګ راغلـه نـو خبـز
الـوداع دے د خوشـحال خټـک پرهـېـز

ـــــ **ساتل** :- اص-پرهېز کول ، پرهېز لرل ، پرهېز نيول.
ـــــ **کول** :- (اص) (۱) ځان ساتل ، احتياط کول ، پرېز کول ، پرهېز لرل ، پرهېز ساتل ، پرهېز نيول (۲) په بيمارۍ کښې يو مخصوص خوراک خوړل.
ـــــ **لرل** :- (اص) پرهېز کول ، پرهېز ساتل ، احتياط کول ، پرهېز نيول.
ـــــ **ماتول** :- (اص) (۱) منـع کـړے خـوراک بيـا شـروع کـول (۲) پـه بـدو کارونو شروع کول
ـــــ **ماتېدل** :- (اص) (۱) د منع کړي خوراک بيـا شـروع کېـدل (۲) پـه بـدو کارونو شروع کېدل.
ـــــ **نيول** :- (اص) و ـــ پرهېز کول.
**په پرهېز کښې ګرځېدل** :- (اص) (۱) ځان سنبال ساتل (۲) چپـه خولـهٔ پـاتې کېدل
**پرهېـز** :- (پَ + رْ + هـې + زْ) [اف : پـه (قـاموس) اس مـذ] د خر يـا د بـل ځناور د لګېدلي او زخمي ځاے سره د ځل يا کتې سورے.
ـــــ **نيول** :- (اف) اص ، د زخم د پاسه ځل يا کته سورے کول.
**پرهېزانه** :- (پَ +رْ+هې+ زا + نَه) [پ، اس، مؤ ، و ، ج : پرهېزانې] پرېزانه د پرهېز خوراک ، د بيمار مخصوص خوراک
**پرهېزګار** :- (پرهېز + ګا + رْ) [فـا ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : پرهېزګـاران ، (مؤ : وا : پرهېزګاره ، ج : پرهېزګارې)] پرهېزي، پاک ، نېـک ، د بدو نه ځان ساتونکے.پرهېز کونکے ، متقي
**پرهېزګاري** :- (پرهېـز + ګـا + رِيْ) [فـا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پرهېزګارۍ] نيکي ، پاکي ، تقوٰی ، د بدو نه ځان ساتنه ، پرهېز کونه.

**پرهېزي** :- (پَ + رْ + هې + زِيْ) [ پ ، اس ] پرهېز کوونکے ، پرهېزګار ،
ښکلې جــــونـــه نــازنینې هم پرېځ مه جبینې
وائي ستا د عشق سندرې هم شکرې هم نمکې مصري خان
**پرئـي** :- (پَ + رْ + ئــيْ) [ پ ، فــا : پــري ، اس ، مــؤ ، وا ، ج : پریــانې] (۱) ښاپیرۍ (۲) ښکلے جل
**پرئي** :- (پَ + رْ + ئيْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] ډل ، د یـم راکښل ، په دوؤ کسانو د ښیلچې راکښل.
**پري** :- (پَ + رِيْ) [فا ، اس ، مؤ ] و ـــ پرۍ.
**پري پیکر** :- (پري + پې + کَ + رْ) [ فا ، ص ] پري رویه ، پریـوار ، ښکلے ، ښائسته ، ډولے ، پري وش.
چې تاګورمه حېران شم چې ته څه رنګه بشر ئې
روولے ئې د حــوري کـــه سرے پري پیکر ئې خوشحال خان
**پري رویه** :- (پري + رُوْ + یَه) [ فا ، ص ] و ـــ پري پیکر.
نیمه شپه مې په پالنګ راغله دلبره
پـــري رویـــه عنبر بـویه سمن بره خوشحال
**پـري زاد** :- (پري + زا + دْ) [ فـا ، ص ، مـذ (مـؤ ، ا : پري زاده ، ج : د پري زادې ] (۱) د پري اولاد (۲) ډېر ښکلے.
ؤ څۀ اَس ، ؤ نۀ اس ، ؤ برق بادود
په هُنر کښې اٰدم زاد نۀ پرېزاد ؤ حمید
**پري زادګي** :- (پري + زا + د + ګَ + يَی) [ پ ، اس ، مـؤ] (۱) د ښاپیرۍ اولاد (۲) ډېره ښکلې ، ښائسته.
**پـري وار** :- (پري + وا + رْ) [ فـا ، ص ، مـذ (مـؤ ، وا : پري واره ، ج : پـري وارې) و ـــ پري پیکر.
زۀ خوشحال پـه لېونتوب کښـې خوشحال کړم
دېوانـــه د پـــري وار یمـــه پـــه ځـــا ے یـــم
مخ نسرینه مه جبینه
سنبل مـویه پري واره خوشحال
**پري وش** :- (پري + وَ + شْ) [ فا ، ص ، مذ (مـؤ ، وا : پري وشه ، ج : پري وشې) و ـــ پري پیکر.
د جنون بخره مې اوس نۀ ده هاله ده
چې مئین په هغې یارې پري وش یم خوشحال
**پُري** :- (پُ + رِيْ) [ فا ، لاحقه ] ډېر والے ، ډکوالے ، لکه : خانه پُري
**پرے** :- (پْ+رَے) [پ (ګن)اس، مذ،وا، ج : پریان ] پېرے، ښاپېرۍ، جن
**پرې** :- (پْ + رې) [ پ ، حرف ] (۱) پر ، باندې ، دپاسه (۲) غوځ ، پرې کړې، شوکولے.
پـرې پـه مـس زمـا د تـن تمـامي زر شـي
عاشقي زما په په باب کښې کیمیا راغله

معزالله د عـــاشقـــانو سر بـــه پرې کا
چې په لاس لرې د وروځو تېغ اٰبدار کج معزالله خان
ـــــ **کول**: (اص) (۱) غوځول ، شوکول. (۲) تعلق ختمول ، طمع نه کول
**پریال** :- (پَ + رْ + یا + لْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پریالونـه ] یو قسم کېږدۍ.
**پري اېښې** :- (پَري + اې + ښې یا خې) [ پ ، ص ] پرېښودلے ، تعلق پرې کړے.
همېشه ئې یم پرې اېښے په ژړا کښې
کــه لــه ما په خوشحالۍ په خندا لاړ معزالله خان
**پرېباسل** :- (پـرې + بـا + َ + لْ) [ پ ، مـص مـت ] (۱) پـرزول ، پرتـاوول ، نسـکورول (۲) کښېـنـه ګـذارول ، لاندې اچـول (۳) وربانـدې اچـول (۴) خوبولے کول ، اودۀ کول ، لولو کول.
وګرنــګ وتـــه پخپله ځان پرې باسي
چې د زړۀ وته پرې باسي روئي د ستا رحمٰن بابا

د اغیــــارو ســــره خانـــــده
پــه خوشــحال تنــدر پرېباســه
**توري پرېباسل** :- (اص) تُوري راخلاصول ، په تورو غوځول.
**پري باسنه** :- (پرې + با + سْ + نَه) [ پ ، حمص ] (۱) پرزونه ، نسکورونه (۲) راګذارونه ، دپاسه نه پرې را اچونه (۳) خوبولے کونه ، اودۀ کونه
**پرې باسونکے** :- (پرې + با + سُو + نْ + کَے) [ پ ، اس فـا ع ، وا ، ج : پرې باسونکي ، مؤ : پرې باسونکې) ] (۱) پرزوُونکے ، نسکورووونکے ، پرتـاوونکے ، پـرې یسـتونکے (۲) راګـذاروونکے ، دپاسـه نـه پـرې را اچوونکے (۳) اودۀ کوونکے ، خوبولے کوونکے
**پرېبدل** :- (پْ + رې + بْ + دْ + لْ) [ اف ، پ (قاموس) مص مت ] پرېبـل ، وهل ، ټکول ، پرېوول.
**پرېبدلے** :- (پْ + رې + بْ + دْ + لَے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پرېبدلي ، مؤ : پرېبدلې )] وهلے ، ټکولے.
**پرېبدنـه** :- (پْ + رې + بْ + دْ + نَـه) [ اف : پ (قـاموس) حمص] پرېبـدۀ ، وهنه ، ټکونه
**پرېبدُونکے** :- (پْ + رې + بْ + دُوْ + نْ + کَے) [ اف ، پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پرېبدُونکي (مؤ : پرېبـدونکې) ] وهلے کېـدونکے ، ټکولے کېدونکے
**پرېبدۀ** :-(پْ + رې + بْ + دۀ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـ پرېبدنه
**پرېبل** :- (پْ + رې + بْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت] و ـ پرېبدل
**پرېـټ** :- (پَ + رې + ټْ) [ پ (عـام) انـګ : پرېـډ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پرېټونه ، پرېټینـه ] (۱) د فـوځ ورزش ، ډرل ، د فـوځي تربیت تعلیم (۲) اف : د سـر د وېښـتـو پـه یـو خـاص انـداز جـوړول (۳) اف : دقمیص ګونځې ګونځې کول.
ـــــ **انسټل**: (اص) (۱) د مشر عهده دار د پرېټ ذمـه واري تر لاسه کول (۲) په چا پرېټ کول (۳) اف : قمیص ګونځې ګونځې کول.
ـــــ **کول**: (اص) (۱) ورزش او ډل کول ، تور برېښ کول ، (۲) په څۀ غـرض پسې بیا بیا تلل راتلل.
ـــــ **نیول**: (اف) اص.د سر وېښتۀ په یو خاص انداز جوړول.
**پرېټه** :- (پَ + رې + ټَه) [ پ (ب، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : پرېټې]و-پراټه
**پرېټي** :- (پَ + رې + ټِي) [ پ (عا) اس ص ] د پرېټ ماهر ، په پرېټ پوهه
**پـرېچ** :- (پْ + رې + چْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پرېچونـه ] پرچ ، د چایو د پیالې ورکوټې رکابۍ.
**پرېخر** :- (پَ + رې + ښَ + رْ) [ پ (ب ، خ) اس ، مذ (مؤ ، وا : پرېخـره ، ج : پرېخړې) ] ښنګښن ، یو خوا ته ، یو طرف ته ، بېل یو ډډې ته.
که له ښۀ رویه د پلار ښۀ د رور درور شي
ګاه لـــه دواړه تـــوګر ګـــرځي پـــرېخـــر خوشحال خان
**پرې دار** :- (پَ + رې + دا + رْ) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پرې داران ، (مؤ ، وا : پـرې داره ،ج : پـرې داران) ] پهرېـدار ، پارېـدار ، ژغورنـه او ځارنه کوونکے ، پهره ورکوونکے ، څوکیدار.
**پرېداري** :- (پَ + رې + دا + رِيْ) [ پ ، اس ، مؤ] پهرېداري ، څوکېداري ، ژغورنه.
**پرېدل**:-(پْ + رې + دْ + لْ) [ پ ، مص مت ] پرېږل ، پرېښول ، پرېښل

**پرېدل** :- (پَ + رې + دَ + لْ) [پ ، مص لا] (۱) زغلېدل ، په منډه کېدل (۲) د څهٔ څيز په غلا تښتولے کېدل۔

**پرېدلے** :- (پَ + رې + دَ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرېدلي (مؤ : پرېدلې) ] (۱) زغلولے شوے ، منډه ورکړې شوې (۲) څهٔ څيز د غلا په ډول تښتولے شوے۔

**پرېدنه** :- (پَ + رې + دَ + نَه) [پ ، حمص] (۱) زغلېدنه ، په منډه کېدنه (۲) د څهٔ څيز په غلا تښتولے کېدنه۔

**پرېـــدونکے** :- (پَ + رې + دُوْ + نْ + کَـے) [پ ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : پرېدونکي ، مؤ : پرېدونکې) ] (۱) زغلېدونکے ، په منډه کېدونکے ، (۲) څهٔ څيز په غلا تښتولے کېدونکے۔

**پرېډ** :- (پَ + رې + ډْ) [ انګ ، اس ،مذ ، وا ، ج : پرېډونه ] و ـ پرېټ

**پرېړ** :- (پْ + رِيْ + ړْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: پرېړه ، ج : پرېړې) ] پنډ ، پېړ ، پټوخ ، غټ۔

**پرېړ توب** :- (پرېړ + تو + بْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] غټ والے ضخامت ، پرېړتيا ، پرېړ والے۔

**پرېړتيا** :- (پرېړ + تَ + يا) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـ پرېړتوب

**پرېړوالے** :-(پرېړ + وا + لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـ پرېړتوب

**پرېړول** :- (پْ + رِيْ + ړَ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص ، مت] غټول ، ضخامت زياتول۔

**پرېړونـه** :- (پْ + رِيْ + ړَ + وْ + نَـه) [اف : پ (قـاموس) حمـص] غټونـه ، ضخامت زياتونه۔

**پرېړوُونکے** :- (پْ + رِيْ + ړَ + وُوْ +نْ+ کَے) [اف : پ (قاموس) اس فـا ع ، مذ ، وا ، ج : پرېړوُونکي ، (مؤ : پرېړونکې) ] غټوونکے ، ضـخامت زياتوونکے۔

**پرېـړه** :- (پْ + رې + ړَه) [پ (وز) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پرېـړې] پـروړې ، پرورهٔ ، بُوس ، پُوړ۔

**پرېړۍ** :- (پْ + رِيْ + ړَ + يَی) [پ (ګن) اس ، مؤ] د پُوزو نه جوړ د غلې د ساتلو دپاره کندو شان ، انډېرے ، تراټه۔

**پرېړېدل** :- (پْ + رې + رې + دَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] غټېـدل ، ضخامت زياتېدل۔

**پرېړېدنه** :- (پْ + رِيْ + رې + دَ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] پرېړېدهٔ، غټېدنه ، ضخامت زياتېدنه۔

**پرېړېـدونکے** :- (پْ + رِيْ + رې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قـاموس) مـف، مــذ ، وا ، ج : پرېړېـدُونکي (مـؤ : پرېړېــدونکې ] غټېــدونکے، ضخامت زياتېدونکے۔

**پرېړېدهٔ** :- (پْ + رِيْ + رې + دَهٔ) [اف : پ (قاموس) حمص]و- پرېړېدنه

**پرېز** :- (پَ + رَ + يْ+ زْ) [پ (عا) فا : پرهېز ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرېزونه ، پرېزينه ] و ـــــ پرهېز۔

**پرېزانه** :- (پَ +رې +زا+ نَه) [پ،اس، مؤ، وا ،ج: پرېزانې]و- پرهېزانه

**پرېږدل** :- (پْ + رې + ږْ + دَ + لْ يا پْ + رې + ګْ + دَ + لْ) [پ، مص مت] پرېښودل ، پرېښول۔

همېشه به په خوشئ په خوشحالی وي
کـه څوک خپل رضا پرېږدي و قضا ته معزالله خان

**پرېږه** :- (پْ + رې + ژَه يا ګه) [اف : پ (قـاموس) اس ص ] قحط وهلے ، قحط زپلے۔

**پرېس**:-(پْ + رې + سْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرېسُونه ] چاپه خانه

**پــرېس اتاشــي** :- (پـرېس + اَ + تـا + شِـيْ) [انـګ ، اس ، ص ، مـذ] پـه سفارت خانه کښې د پرېس ذمه وار عهده دار۔

**پــرېس رپــورټ** :- (پـرېس + رَ + پـو + رْ + ټْ) [انـګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: پرېس رپورټونه ] اخبـاري اطلاع ، د اخبـار د نمائنده پـه ذريعـه خـور شوے خبر۔

**پرېس رپورټر** :- (پـرېس + رَ + پـو + رْ + ټَ + رْ) [انګ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پــرېس رپــورټران ، (مــؤ ، وا: پــرېس رپــورټره ، ج: پــرېس رپورټرې) ] اخبـاري نمائنده ، د اخبارونو هغـه ذمـه وار غـړے چې خپل اخبار ته خبرونه راجمع کوي۔

**پرېس کانفرنس** :- (پـرېس + کا + نْ + فْ + رِ + نْ + سْ) [انګ ، اس، ص ، مـذ ، وا ، ج : پـرېس کانفرنسـونه ] د اخبـار والاؤ راغوښـتې شـوې غونډه چې پکښې پـه څهٔ خاص موضـوع بيـان د چـاپ کولـو دپـاره ورکولے شي۔

**پرېس نوټ** :- (پـرېس + نَـو + ټْ) [انګ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پرېس نوټونه ] د حکومت لـه خوا پـه څهٔ خاص موضـوع اخبارونوتـه ليـکلے ورکړے شوے بيان۔

**پرېسـه** :- (پْ + رِيْ + سَـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مـؤ ، وا ، ج : پريسې ] بې کاره ښځه ، وزګاره۔

**پرېشان** :- (پَ + رې + شا + نْ) [فـا ، ص ، مـذ ، (مـؤ ، وا: پرېشـانه ، ج: پرېشـانې) ] (۱) حېـران ، سرګردان ، سر وهلے بـر وهلے ، فکـرمن ، دلګير ۔(۲) خور وور ، وير۔

زړهٔ مې پرېشـان شـهٔ چې و مـا و تـه دې شا کړه
زهٔ پــه دا خبــره ګــواه لــرم د ســتا کاکــل

دوارِهزلفې ئې پرېشانه په خپل مخ کړې
کـــه پــــه نمر د پاسه راغـے اندېر ګوره معزالله خان

**ـــــ پرېشان**: (اص۔خفه خفه ، دلګير شان ، فکرمن ، خور وور۔

**پرېشان حال** :- (پرېشـان + حا + لْ) (۱) خفه ، دلګير

**پرېشـاني** :- (پَ + رې + شـا + نـيْ) [فـا ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پرېشـانۍ] خفګان ، فکرمندي ، دلګيري ، خفتين

پرېشاني مې هم قرينه د خطر شوه
جمعيت لـــــره مزاج ورکړه طلاق مصري خان

**پرېښته** :- (پَ + رِيْ + شْ + تَه يا پَ + رِيْ + خْ + تَه) [پ ، فا : فرشـته، اس ، مؤ ، وا ، ج : پرېښتې ] فرشته ، آسماني مخلوق۔

**پرېښکه** :- (پْ + رې + شْ + کَه يا خْ + کَه) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مـؤ ، وا: ج : پرېښـکې ] طلاقـه کـړې ښـځه ، پرېښـولې ښـځه، پـرې اېښې ښځه ، خلاصه کړې ښځه۔

**پرېښودل** :- (پ + رې + شو + دَ + لْ يا پْ + رې + خو + دَ + لْ) [پ ، مص مت ] (۱) پرېـږدل ، پرېښـول (۲) خلاصـول ، رهـا کـول ، بري کول (۳) روسـتو پـاتې کـول ، شـاته پرېښـول (۴) ښځه طلاقـول ، خلاصول۔

**پرېښودلې** :- (پْ + رې + شو + دَ + لَے يا خو + دَ + لْې) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرېښـودلي ، (مـؤ : پرېښـودلې) ] (۱) پرېښـولے ، پرېښـوولے (۲) خلاص کـړے ، رها کـړے ، بـري کـړے (۳) روسـتو پـاتې کـړے ، شاته پرې اېښے۔

**پرېښـودنه** :- (پْ + رې + شـو+ دَ + نَـه يـا خـو + دَ + نَـه) [پ ، حمـص] (۱) پرېښونه ، پرېښـوده ، پرېښـووه ۔پرېښـودنګ (۲) خلاصـونه بـري کونه ، رها کونه ، (۳) روستو پرېښونه ، (۴) طلاقونه ، خلاصونه۔

**پرېښودونکے** :- (پْ + رې + شو + دُوْ + نْ + کَے يا خو + دُوْ + نْ + کَے) [پ ،

اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : پرېښـودونکي (مـؤ : پرېښـودونکې ] (۱) پرېښـوُنکے (۲) خلاصـوُونکے ،بري کـوونکے (۳) روسـتـو پـاتې کوونکے (۴) طلاقوُونکے ، خلاصوونکے۔

**پرېښـوُونے** :- (پْ + رِې + خـو + دُو + نَـے ) [ پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: پرېښودوني (مؤ : پرېښودُوني) ] (۱) پرېښودُونے ، خلاصېدونکے ، بري کېدونکے ، (۲) روستو پاتې کېدونکے

**پرېښودۀ** :- (پْ + رِې + شو + دۀ یا خو + دۀ ) [ پ ، حمص ] و۔پرېښودنه۔

**پرېښـول** :- (پْ + رِې + شْ + وْ + ل یـا پْ + رِې + خْ + وْ + لْ ) [پ ، مـص مت ] و ـــ پرېښودل۔

**پرېښولے** :- (پ + رِې + شْ + وْ + لے یا پْ + رِې + خْ + وْ + لَے ) [پ، مف، مذ ، وا ، ج : پرېښولي ، (مؤ : پرېښولې) ] و ـــ پرېښودلے۔

**پرېښون** :- (پْ +رِې + شُوْ + نْ یا پرِې + خُوْ + نْ ) [پ ، اس ، مذ ] جُوتېه ، پاتې شُونے خوراک۔

**پرېښونه** :- (پْ + رِې + شْ + وْ + نَه یا پرِې + خْ + وْ + نَه ) [پ ، حمص] و ـــ پرېښودنه۔

**پرېښوول** :- (پْ + رِې + شو + وْ + لْ یا خو + وْ + لْ ) [ پ مص مت ] و ـــ پرېښودل

**پرېښوونګ** :- (پْ + رِې + خو + وْ + نْ + ګْ ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ پرېښودنه۔

**پرېښوونکے** :- (پْ + رِې + شْ + وُوْ + نْ + کَے یا پـرِې + خْ + وُوْ + نْ + کَـے ) [ پ ، اس ، فا ، ع ، مذ ، وا ، ج : پرېښوونکي ، (مؤ: پرېښوونکې) ] و ـــ پرېښودُونکے۔

**پرېښودُونکے** :- (پْ + رِې + شو + وُوْ + نْ + کَے یا خو + وُوْ + نْ + کَـے ) [ پ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پرېښووونکي (مؤ : پرېښوونکې)] و ـــ پرېښودُونکے۔

**پرېښووُونے**:- (پْ + رِې + شو + وُو + نَے یا خو + وُوْ + نَے ) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرېښووُوني ، (مؤ : پرېښووُونې) ] و ـــــ پرېښودُونے۔

**پرېښووه** :- (پْ + رِې + شو + وۀ یا خو + وۀ ) [ پ ، حمص] وپرېښودنه۔

**پرېښے** :-(پْ + رِې + شَے یا خَے ) [ پ ،ص ، مذ ، وا ، ج : پرېښي (مؤ: پرېښې) ] (۱) پرې اېښے ، پرېښودلے (۲) خلاص کړے (۳) پاتې کړے

**پرېکـړون** :- (پْ + رِې + کْ + ړُو + نْ ) [ پ ، ص ، مذ]فېصله ، غـوڅ پـرې کړے ، پرېکړه۔

ـــــ **کول**: (اص) فېصله کول ، غوڅول ، پرې کول۔

ـــــ **کېدل**: (اص) فېصله کېدل ، غوڅېدل ، پرې کېدل۔

**پرېکـړه** :- (پْ + رِې + کْ + ړَه ) [ پ ، ص ، مـؤ] (۱) و ـــ پرېکـړون (۲) د ښکلې او بد رنګ کړۀ وړۀ ۔

ـــــ **کول**: (اص) و ـــــ پرېکړُون کېدل۔

**پرېکـړے** :- (پْ + رِې + کْ + ړَے ) [ پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : پرېکـړي ، (مـؤ : پرېکـړې) ] (۱) غـوڅ کـړے ، شـلولے (۲) فېصـلـه شـوے ، (۳) ادا کړے ، ورکړے (۴) ختم کړے ، قطع کړے ۔

تـا چې تبغ د کـرو وروځو په لاس ونیو
د ژوندون اُمید مې دے له زړۀ پرېکړے معزالله خان

**پـــرېکټس** :- (پْ + رِې + کْ + ټِ + سْ ) [ انـــګ ، اس ، مـــذ ، وا ، ج: پرېکټسونه ] (۱) پـراتیس ، مشق ، مهارت (۲) د ډاکټر یـا وکیـل د خپلې پیشې کار چې د خلقونه عوض پرې اخلي ۔

ـــــ **کول**: (اص) (۱) مشق کول ، مهارت حاصلول (۲) د ډاکټر یـا د وکیـل د خپلې پیشې کار کول۔

**پرېکټیکـل** :- (پْ + رِې + کْ + ټِـيْ + کَ + لْ ) [ انګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پریکټیکلونه ] عملي تجربه۔

**پرېکول** :- (پْ +رِې+کَ + وْ + لْ ) [پ،مص مت] (۱) شلول، څیرې کول (۲) کټ کول ، غوڅول ۔(۳) ختمول ، فېصله کول۔ (۴) کنستل۔

تبـغ د مینـې بـه ئـې بیـا دربـاره پـرې کـا
تـا کـه زخـم "معــزالله" د زړۀ رفــو کـــړ

د مرزا دا ارزاني دوعې به پرې کا
قـدردان د شـاعرانو "رحمـٰن" راغ

تپه: قبر ئې ښۀ پرېکړئ یارانو
مؤمن پردېس دے پکښې تېر به کې کالونه

**طمع پرېکول** :- (اص) حیله ایستل ، نا امېنده کېدل ، طمع نۀ کول

**پرېکون** :- (پـرِې + کُوْ + نْ ) [ پ ، اس ، مذ] (۱) پرېکونګ ، پرېکه پـرې کونه،غوڅونه ، کټ کونه ۔(۲) بېلتـون ، بېلوالے (۳) اختلاف (۴) د وادۀ د نېټې د مقررولو په ورځ د ورکړې راکړې د دستورې فېصله۔

ـــــ **کول**: (اص) (۱) پرېـکـه کـول ، پـرې کـول ، غوڅول ، کټ کول (۲) بېلول ، جدا کول ، (۳) اختلاف راوستل (۴) فېصله کول۔

ـــــ **کېدل**: (اص) (۱) پرېکه کېدل ، پرې کېدل ، غوڅېدل (۲) بېلېـدل جدا کېدل (۳) اختلاف راوستلے کېدل (۴) فېصله کېدل۔

**پرېګـوړ** :-(پـرِې + ګـو + ړ ) [ اف : پ(قـاموس) اس ، مـذ] (۱) سـرتړُونے (۲) بچوکے (۳) د غولې خولۀ۔

**پرېکونګ** :- (پرِې + کَ + وْ + نْ + ګْ ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پرېکون۔

**پرېکونه** :- (پرِې + کَ + وْ + نَه ) [ پ ، حمص] و ـــ پرېکون۔

**پرېکوُونکے** :- (پـرِې + کَ + وُو + نْ + کَـے ) [ پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: پرېکـوُونکي ، (مـؤ : پرېکـوُونکې) ] (۱) پرېکـوُونے ، شـلوونکے ، څیرې کوونکے (۲) غوڅوونکے ، کټ کوونکے (۳) فېصله کوونکے ، ختموونکے۔

**پرېکوُونـے** :- (پـرِې + کَ +وُوْ + نَـے ) [ پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : پرېکووني (مؤ : پرېکوونې) ] و ـــ پرېکوُونکے۔

**پرېکه** :- (پرِې + کَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ پرېکون

ـــــ **کول**: (اف) اص۔و ـــ پرېکون کول ۔

ـــــ **کېدل**: (اف) اص۔و ـــــ پرېکون کېدل۔

**پـرې کېدل** :- (پرِې + کې + دْ + لْ ) [پ ، مص ، لا] (۱) شـلېدل ، څیـرې کېـدل (۲) غوڅېـدل ، کـټ کېـدل (۳) ختمېـدل ، فېصـلـه کېـدل (۴) کنستلے کېدل۔

**پرېکېدنګ** :-(پرِې + کېې+دْ +نْ + ګْ ) [اف:پ (قاموس) حمص] و - پرېکېدنه

**پرېکېدنـه** :- (پـرِ ې+ کـې + دْ + نَـه ) [ پ ، حمـص] (۱) شـلېدنه ، څیـرې کېدنـه (۲) غوڅېدنـه ، کـټ کېدنـه (۳) ختم کېدنـه ، قطع کېدنـه ، فېصله کېدنه (۴) کنستے کېدنه۔

**پرېکېـدُونکے** :- (پــرِې +کـې +دُو + نْ + کَــے ) [ پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: پرېکېـــدونکي ، (مـــؤ : پرېکېـــدونکې) ] (۱) پرېکېــدُونکے ، شـلېدونکے ،څیـرې کېـدونکے (۲) غوڅېـدونکے ، کـټ کېـدونکے (۳) ختمېدونکے ، فېصله کېدُونکے (۴) کنستلے کېدونکے۔

**پرېکېدونے** :- (پرِې + کې + دُو + نَے ) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرېکېدوني (مؤ : پرېکېدُونې) ] و ـــ پرېکېدونکے۔

**پـریم** :- (پْ + رِيْ + مْ ) [ پ (سـو) اس ، مـذ ، وا ، ج : پریمُونـه ] د ښځـې پرده ، برنڅ۔

**پرېم** :- (پْ + رَيْ + مْ) [س ، اس ، مذ] مينه ، محبت

**ـــــ کول**: (اص) مينه کول ، محبت کول.

**پـرېم**:-(پْ +رېْ+مْ) [پ (عـا) انـګ : فـرېم ، اس، مـذ ، وا ، ج: پرېمونـه] (۱) فـرېم، حلقـه ، د تصـوير يـا چشـمو ګېـر چـاپېر لګېـدلـې د لرګي، اوسپنې يا د مسالې چوکټ (۲) ډانچه.

**ـــــ کول**: (اص) تصوير ته ګېر چاپېر لرګې او شيشه لګول.

**پرېمان** :- (پري + ما + نْ) [پ ، فا ، فراوان ، اس ، مذ ، (مؤ : پرېمانه) ] (۱) پرېوان ، بس بسيار ، ډېر زيات (۲) اباد ، ښېرازه (۳) د مور په خېټه کښې د بچي چارچاپېره پرده.

**ـــــ اچول**: (اص) د بچي د پېدائش نه پس د مور د خېټې نه د پردې بهر وتل ، پرېوان ارتاوول.

**ـــــ ارتاول**: (اص) و ـــ پرېمان اچول.

**ـــــ بندېدل**: (اص) د بچي د پېدائش نه پس د مور په خېټه کښې د پردې پاتې کېدل.

**پرېماني** :- (پـرېْ + مـا + نـيْ) [پ ، اس ، ص ، مـؤ ، وا ، ج : پرېمـانۍ] (۱) ابادي ، ښېرازي ، سوکالي (۲) زياتوالې ، ډېروالې ، پرېواني

**پرېمانه پرېمانه**:-(اص) (۱) ډېره ابادي، زياته سوکالي (۲) زياتوالې، ډېر والې ، پرېوانه پرېواني.

**پرېمشتل** :- (پْ + رېْ + مَ + شْ + تْ + لْ) [پ ، مص مت] پرېمـل اوسېدل ، مېشتهٔ کېدل.

د ارام په مينه پرېمشت په ارام شهٔ
خلاص له ډېره کشمکش د ايام شهٔ حميده

**پرېمل** :- (پْ + رېْ + مْ + لْ) [پ ، مص مت] (۱) اوسېدل ، مېشتهٔ کېـدل ، پرېمشتل.(۲) ځاے نيول ، قبضه کول.

پــه خــاطر بانــدې چــې ګــړه د غــنم پېملـې
د جهـــــان خوښــــۍ واړه کــــــه پــــــدر ود
په هر ملک چې مزري پرېملي نور ئې خپل کا
پـــــه جـــــورائې روبـــــاه کلـــــه ږدي قدم مصري خان

**پـرېمن** :- (پْ + رېْ + مْ + نْ) [پ ، (ب، خ) ص ، مـذ (مـؤ ، وا: پرېمنـه ج: پرېمنې)] په تسلۍ ، په مزه ، په خوشۍ ، په يخ زړهٔ ، خوښ

**پرېمني** :- (پْ + رېْ + مْ +نيْ) [پ ، (ګن) اس ، مؤ] و ـــ پروين

**پريميـر**:- (پْ + رِيْ + مْ + يَ + رْ) [انـګ ، اس، مـذ ، وا ، ج : پريميـران] وزيراعظم.

**پريميم** :- (پْ + رِيْ + مْ + يَ + مْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پريميمونه] قشط ، موټې ، نېټه.

**پرېمينځل** :- (پْ + رېْ + مېْ + نْ + ځْ + لْ) [پ ، مص مت] پرېوينځـل ، پرينځل، وينځل، ولل ، پاکول ، په اوبو ويستل ، مينځل ، پرېولل.

**پرېمينځلے** :- (پْ + رېْ + مـېْ + نْ + دْزَ + لَـے) [پ ،مـف ، مـذ ، وا ، ج: پرېمينځلي (مـؤ : پرېمينځلې) ] پرېـوينځلـے ، پرينځلـے ، وينځلـے ، وللے ، په اوبو ويستلے ، مينځلے ، پرېوللے

**پرېمينځُونکے**:-(پْ + رېْ + مېْ + نْ + دْزُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا: پرېمينځُونکي (مؤ : پرېمينځونکې) ] پرېوينځونکے ، ولـونکے ، په اوبو پاکوُونکے ، د اوبو نه ويستونکے.

**پرېمينځنـه**:-(پْ + رېْ+مـېْ + نْ + دْزَ + نَـه) [پ ، حمـص] پرېوينځنـه ، پرينځنـه ، وينځنـه ، مينځنـه ، ولنـه ، پـه اوبـو پاکونـه ، لـه اوبـو نـه ويستنه.

**پرين** :- (پْ + رِيْ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د خېټې پرده ، برنځ ، پرېنډ ، پريم (۲) د ماشومانو يوه لوبه.

**ـــــ راوتل**: (اص) په څهٔ کار پسې زيات کړېدل يا زورېدل.

**پرين** :- (پَ + رِيْ + نْ) [پ (بنو) اس ، مذ] و ـــ پرون.

**پرينائے** :- (پَ + رِيْ + نا+ ئے) [پ (بنو) ص ، مذ ، وا ، ج : پريني ، (مؤ : پرينۍ)] و ـــ پرونے.

**پرينځل** :- (پْ + رِيْ + نْ + دْزَ + لْ) [پ (اُس) مص مت] و ـ پرېمينځل

**پرينځلے** :- (پْ + رِيْ + نْ + دْزَ + لَـے) [پ (اُس) مـف ، مـذ ، وا ، ج : پرينځلي (مؤ : پرينځلې)] و ـــ پرېمينځلے.

**پرينځنه** :- (پْ + رِيْ + نْ + دْزَ + نَه) [پ (اُس) حمص] و ـ پرېمينځنه

**پرينځُونکے** :- (پْ + ري + نْ + دْزُوْ + نْ + کَے) [پ (اُس) اس، فـا ع مـذ ، وا ، ج : پرينځُونکي (مؤ : پرينځونکې) ] و ـ پرېمينځونکے

**پريند** :- (پْ + رِيْ +نْ + دْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پريندُونه] پرين پريم ، برنځ ، د خېټې پرده.

**پرين** :- (پَ + رْ + يَ + نْ) [پ، اس ،مذ] بند پېوند ، بندوبست.

**پرينے** :- (پَ + رْ + يَ + نَے) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مـذ] پوهـه، په چل پوهېدونکے ، بند پېوند تړونکے ، بندوبست کوونکے.

**پرېو** :- (پْ + رېْ + وْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] مُريد ، چيلا.

**پرېواتـه**:- (پْ + رېْ + وا + تـهٔ) [پ، حمـص] (۱) پرېوتنـه ، غورزېدنـه، پرتاوېدنه ، راګُذارېدنه (۲) ډوبېدنه ، قبله (۳) ځملاستنه ، غزېدنه ، خوبولے کېدنه (۴) ناکامياېدنه ، ناکامېدنه.

**پرېـــوان** :- (پْ + رېْ + وا + نْ) [پ ، اس ، مـذ (مـؤ ، وا: پرېوانـه ، ج: پرېوانې)] پرېمان.

رنګينه جـــامې اغوستې رابېکاره شه ناګهان
راته اوګوره اوخانده خوشحالي مې کړه پرېوان خوشحال خان

**پرېواني** :- (پْ + رېْ + وا + نيْ) [پ ، اس ، مؤ] و ـــ پرېماني.

**پرېوانه پرېواني** :- (اص) و ـــ پرېمانه پرېماني.

**پرېـــوتکي** :- (پْ + رېْ + وَ + تْ + کَـے) [پ (سـو) اس ، مـؤ] پروتـې ، زېلانګې ،

**پرېوتـــل** :- (پْ+رېْ+وَ+تْ+ل) [پ ، مـص] (۱) غُورځېـدل ، پرتاوېـدل ، راګُذارېدل ، ارتاوېدل ، کوزه غورځېدل ، لاندې اچېدل (۲) ځملاستل ، غزېدل ، اودهٔ کېدل (۳) ډوبېدل ، پناه کېدل (۴) دېره کېدل،پړاؤ اچول (۵) ناڅاپې حمله کول (۶) رېژېدل پانې توئېدل (۷) نړېدل ، رنګېدل (۸) په تجارت کښې نقصان خوړل يا موندل (۹) ناکامېدل ، فېل کېدل (۱۰) رنځورېدل، بيمارېدل (۱۱) ښوئېدل (۱۲) انښتل.

چې په زړهٔ کښې ئې هوس ستا د ذقن ؤ
هـــوا دار ئې ډېـــرو چـاه تـه پرېوتل مصري خان

هـومره پرېـوت غـم د يـار زمـا پـه دل کښې
چې حساب ئې ځائېږے نهٔ شي په کښل کښې

عاقبت به مې د بوال د صبر پرېوځي
چې اوچېږي نـــه د اوښيو يم هر ګز معزالله خان

**بــوړې بـوړې پرېوتـل** :- (اص) پـه کـټ کښـې غمجـن پرېوتـل ، زيـات غمجنېدل

**پرمخ پرېوتل** :-(اص) (۱) اُلټه راغورځېدل (۲) ناکامېدل، ناکامياېه کېدل

**په سجده پرېوتل** :- (اص) سجده کول.

**په کټ کښې پرېوتل** :- (اص) (۱) په کټ ځملاستل ، په کټ اودهٔ کېدل (۲) فکر اخستل،غمجن کېدل (۳) رنځورېدل ، بيمارېدل

**په مېدان پرېوتل** :- (اص) (۱) په ډاګه پرېوتل ، په اوچه ډاګه پاتې کېدل ،

په هوار مېدان مېشتهٔ کېدل (۲) بې اسرې کېدل ، مجبورېدل.

**پېروني پرېوتل** :- (اص) (۱) د پېرونو د ستورو ډوبېدل (۲) ناوختـه کېـدل ، صباوون کېدل.

**تندر پرېوتـل** :- (اص) (۱) د اسمان نـه تنـدر راغورځېـدل ، تکـه پرېوتـل (۲) ناڅاپي څهٔ مصيبت راتلل ، چړک يا چړق راپرېوتل

**تور دکن ته پرېوتل** :- (اص) (۱) د دکن په سفر تلل (۲) پته لګته نهٔ لګېـدل ، بېخي ورکېدل ، سر پته نهٔ لګېدل.

**تکه پرېوتل** :- (اص) و ـــــ تندر پرېوتل.

**د برمه پرېوتل** :- (اص) بې وسه کېدل، بې طاقته کېدل، کمزورے کېدل.

**د پرتوغانږ ګولمو ته پرېوتل** :-(اص) پرتوغانږ ډېر زيات ټينګ تړل.

**د تختَ پرېوتـل**:-(اص) (۱) د تخت نـه کُوزېـدل ،د چانـه بادشـاهي تلـل (۲) مړکېدل، پناه کېدل (۳) زور کېدل (۴) د ښځې کونډېدل.

**د زرو پرېوتل** :- (اص) د زرو قيمت کمېدل ، د سکې قيمت راغورزېدل.

**د زړهٔ پرېوتل** :- (اص) (۱) ژشتېدل يا زښتېدل، بدي کېدل ، د چا پـه مـخ ښهٔ نهٔ لګېدل ، د نظر نه پرېوتل ، په سترګو ښهٔ نهٔ لګېـدل (۲) چرتـه زړهٔ لګېدل ، ځاے خوښېدل.

**دستار پرېوتل** :- (اص) شرمېدل ، بې عزته کېدل .

**د لادو بادو پرېوتل** :- (اص) بې حاله کېدل، بېهوشه کېدل، ډېر ناتوانه کېدل .

**د نصيب ستورے پرېوتل** :-(اص) بدنصيبه کېدل ، قسمت خرابېدل

**د نظر نه پرېوتل** :- (اص) و ـــــ د زړهٔ نه پرېوتل.

**ډنډ تـه پرېوتـل** :- (اص) (۱) پـه څـهٔ بـلا اختـه کېـدل ، پـه څـهٔ جـرم کښـې ګېرېدل (۲) نقصان خوړل.

**زر راپرېوتل** :- (اص) په لږ وخت کښې د چا زوال راتلل.

**زړهٔ ته پرېوتل** :- (اص) (۱) په خبره پوهېدل (۲) خبره خوښېدل

**سترګه پرېوتـل** :- (اص) (۱) نمر ډوبېـدل (۲) ګـن ـ د مېلمنـو سـتورے پرېوتل ، د ماښام غټ ستورے پرېوتل.

**سر پرېوتل** :- (اص) مړ کېدل ، سر خوړل.

**سر د لاندې پرېوتل** :- (اص) بد بد راګېرېدل ، ناکامیابېدل

**سم پرېوتـل** :- (اص) پـوخ راغورزېـدل ، (۲) پـوخ دېـره کېـدل ، چرتـه پخـه ډېره وهل.

**کاڼے پرېوتل** :- (اص) (۱) کاڼے راغورځېـدل ، (۲) تندر پرېوتـل ، ناڅاپي نقصان موندل ، د شين اسمان شرک پرېوتل.

**لاس پرېوتل**:- (اص) لاس غوځېدل ، لاس کټ کېدل ، بې لاسه کېدل

**مازيګر پرېوتل** :- (اص) (۱) نمر پرېوتل ، ډوبېدل (۲) مړ کېدل

**مُلخان راپرېوتل** :- (اص) قحطي ملخان راتلل.

**نرخ پرېوتل** :- (اص) نرخ کمېدل ، بازار سړېدل.

**نظر پرېوتل** :- (اص) ليدل ، کتل.

**هندوستان ته پرېوتل** :- (اص) (۱) د هندوستان په سفر تلل (۲) په لرې سفر روانېدل .

**پرېوتلے** :- (پْ + رې + وَ + تْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرېـوتلي (مؤ : پرېوتلې)] غورځېدلے ، اړتاؤ شوے .

نن مې بل په خاطر ستا د مينې اور دے
په پُنبه کښې پرېوتلے عجب سکور دے معزالله خان

**پرېوتنه** :- (پْ + رې + وَ + تْ + نَه) [پ ، حمص] غورزځېدنه ، اړتاوېدنه

**پرېوتُونکے** :- (پْ + رې + وَ + تُـوْ + نْ + کَـے) [پ ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: پرېوتونکي (مؤ : پرېوتُونکې)] غورځېدونکے ، اړتاوېدونکے

**پرېودل** :- (پْ+رې+وْ + دْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] و- پرېېدل.

**پرېول** :- (پْ + رې + و + لَ + لْ) [پ ، مص ، مت] و ـ پرېمينځل

**پرېـولن** :- (پْ + رې + لَ + نْ) [اف : پ (قـاموس) حمـص] پرېولنـګ ، وينځنه ، پرې وينځنه.

**پرېولنګ** :- (پْ +رې+ وْ+ لَ+ نْ+ ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص]و- پرېولن.

**پرېولُونکے** :- (پْ + رې + وْ + لُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پرېولُونکي] پرېوينځونکے.د اوبو نه ايستونکے.

**پرېولـے** :- (پْ + رې + وْ + لَـے) [پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : پرېـولي] پرېوينځلے ، وينځلے ، صفا.

**ـــــ خبرې**: (اص) صفا سُوچه خبرې ، سپېځلې خبرې.

**پرېـوي کونسـل** :- (پْ + رِيْ + کـو + نْ + سَ + لْ) [انـګ ، اس، مـذ] د پېرنګيانو د حکومت د قانون لويه جرګه چې د هغو فېصله اخري او قطعي وي.

**پرېوينځل** :- (پْ ـرې + وِيْ + نْ + دْزَ + لْ) [پ، مص مت]و-پرېمينځل.

**له ځانه لاس پرې وينځل** :- (اص) له ځانه مايوسه کېدل ، د خپل ژوند نـه نااميده کېدل ، مرګ ته نژدې کېدل.

**پرېوينځلـے** :- (پْ + رې + وِيْ + نْ + دْزَ + لَـے) [پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: پرېوينځونکي) و ـــــ پرېمنځلے.

**پرېوينځنه** :- (پْ + رې + وِيْ + نْ + دْ + زْ + نَه) [پ ، حمص] و- پرېمينځنه

**پرېينځونکے** :- (پْ + رې + وِيْ + نْ + دْزُو +نْ + کَے [پ ، اس ، فـاع مـذ ، وا ، ج : پرېوينځونکي] و ـــــ پرېمنځونکے.

**پـرې ياسته** :- (پْ + رې + يـا +سْ + تَـه) [اف : پ (قـاموس) حمص]و ـــــ پرې باسنه

**پـرې يسـتل**:-(پْ + رې + يِ + سْ + تَ +لْ) [پ ، مـص مـت] (۱)وړول (۲) اچول ، دُوړول (۳) غورزول ، ګذارول (۴) اوده کول ، پرې باسل.

څوک يـو څـاځکے پـرې يستے شـي لـه اسمانه
نـزول کـړے د پـه مـونږ بانـدې بـاران دے
دريغه مرګ ئې په دنيا کښې نيمه خوا شوے
ښـائسته غنچې ئې پـرې يستې د ګـلـــو رحمٰن بابا
عقيله عقل سقر تـــه پرې يستل ده
د بهشت ته پاس ختلي نهٔ دي واش مصري خان

**توله پرې يستل** :- (اص) راغورځول ، راپرځول.

**له برمه پرې يستل** :- (اص) بې وسه کول ـ بې طاقته کول ، کمزورے کـول ، د لادو بادو پرې يستـل ، مجبورول.

**پـرې يسـتلے** :- (پْ + رې + يِ + سْ + تْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: پرې يستل (مؤ : پرې يستلې)] اوده ، خوبولے.

**پرې يستنګ**:-(پرې + يَ + سْ +تَ +نْ + ګْ) اف: پ (قاموس) حمص] و ـــــ پرې يستنه.

**پرې يستنه** :-(پْ+رې +يِ +سْ + تْ+ نَه) [پ، حمص] اوده کونه، پرې يستهٔ

**پرې يستونکے** :- (پْ + رې + يِ + سْ + تُـو + نْ + کَـے) [پ ، فـا ، مذ ، وا، ج : پـرې يسـتونکي (مـؤ : پـرې يسـتونکې)] اوده کـوونکے ، پـرې باسونکے ،

**پرې يستهٔ** :- (پْ + رې + يِ + س + تهٔ) [پ ، حمص] پرې يستنه

**پـرې يـنبے** :- (پْ + رې + يْ + ښَے يا خَـے) [پ ، مف ، مذ ، وا، ج: پرې ينبي (مؤ : پرې ينبې)] پرې ايښے ، پرې ښودلے.

**پـرې يوسـتل** :- (پْ + رې + يـو + سْ + تْ + لْ) [پ ، مـص] غورځـول ورګذارول ، اړتاوول.

و ګړنګ ته د غمونو مې ځان پرې يوست
کاڼي تېرې راوربــــــړي لــه ســرکوبه   معزالله خان

**پرېوېندل** :- (پْ + رې+وي + نْ+دْ + لْ) [پ ، مص مت] غُسل ورکول ، لمبول.

**پـړ**:- (پْ + ړْ) [پ ، اس ، مـذ (مـؤ ، وا : پـړه ، ج : پـړې) ] (۱) لـر شـوے ، مغلوب . متل : پړ مې که نو مړ مې که . (۲) ملامت ، ګرم.

—— **کول**: (اص) (۱) پړول ، لړول ، مغلوب کول. (۲) ملامتول ، ګرمول.

—— **کېدل**: (اص) (۱) پړېدل ، لړ کېدل ، مغلوب کېدل (۲) ملامته کېدل ، ګرمېدل.

**پـړ** :- (پَ + ړْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پړُونـه] (۱) د جـوارۍ ځـاے (۲) کاڼيزه اوچه زمکه.

—— **اخستل**: (اص) ټيکرے اخستل ، د جوارۍ په ځاے کښې د جوارګرو نه مقررې پيسې اخستل.

—— **چلول**: (اص) جواري کول ، په خپل ځاے کښې جوارګرو ته د جوارۍ اجازت ورکول او د هغې په بدل کښې مقررې پيسې ترې اخستل

—— **چلېدل**: (اص) جواري چلېدل

**اوچ پړ کنستل** :- (اص) (۱) کاڼيزه زمکه کنستل (۲) عبث کار کول، بې نتيجې کار ته لاس اچول.

**پُړ** :- (پُ + ړْ) [پ (ګن) اس ، مذ ، وا ، ج : پُړُونه] پټ ، تهه

**پړاپه** :- (پْ + ړا + په) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پړاپې] کورکوړۍ ، بيغه ، بيوغه، کرکوړۍ.

**پـړاخ** :- (پْ + ړا + خْ) [اف : پ (قـاموس) ص ، مـذ(مؤ ، وا : پړاخـه ، ج: پړاخې)] پراخ ، فراخ ، ارت بيرت ، وير پلن.

**پړاخ پـزے** :- (پړاخ + پْ + زَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پړاخ پزي (مؤ: پړاخ پزې) ] غټ پوزے ، چې پوزه ئې پلنه وي. پوزور ، پېزور.

**پـــړاس** :- (پْ + ړا + سْ) [پ (خ) اس صـــو ، مـــذ ، وا ، ج : پړاســـونه] (۱) پړک ، پړس ، ځپېړه (۲) د ځۀ ځيز د لوېدو اواز ، (ب،خ)

—— **ورکول**: (اص) په ځپېړه وهل ، پړس يا پړک ورکول.

—— **ويستل**: (اص) پړس ويستل ،پړک ورکول ، په ځپېړه وهل.

**پړاکے** :- (پْ + ړا + کَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مذ] سخت طبيعتـه او جنجالي سړے ، قهرجن ، غصه ناک ، تندمزاجه.

**پړان پيش** :- (پْ + ړا + نْ + پيْ +شْ) [اس ، مذ ] پړانګ ، پيش ، پيشو پړانګ ، غټ ځنګلي پيش.

**پړانګ** :- (پْ + ړا+ نْ + ګْ) [پ ، فا ، پلنګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پړانګان ، پړلنګـون (مـؤ ، وا: پړانګـه ، ج : پړانګـې ، پړانګـانې)] (۱) يـو ځنګلي خونړے ځناور چې ټکي ټکي څرمن لري .ډېر تېز طاقتور او خطرناک وي (۲) زياتي خور بنيادم.

د همت وسله که داغوندې سپاهي شي
په جنګربز کښې ويره مه کوه له پړانګه   مصري خان

**پړانـګ** :- (پْ + ړا + نْ + ګْ) [پ ، اس ، معـر ، مـذ ] د اشـنغر پـه علاقـه کښې د يو کلي نوم .

**پړانګ پيش**:- (پړانګ + پيْ + شْ) [پ ، اس ، مذ ، وا] و ــ پړان پيش

پــه دا پړانـګ نـۀ شـو خوشـحاله
کـه پـړان پـيش دے پړانـګ ساز

**پړانګه** :- (پْ + ړا + نْ + ګه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ ، ج : پړانګې] برانګه ، ځيرانګه ، چيرړه ، زړه شلېدلې کېړه.

**پړانه وړانه** :- (پْ + ړا + نَه + وْ + ړا + نه) [پ ، اس ، مؤ] پړه وړه ، ګرمـه نا ګرمه ، لړے برے.

احمد دينـه کـه تـۀ وړ ئـې يـار تـه پـړ ئـې
وړانه پړانه کښې دې کوم ګل د ښار اوليد

**پړاؤ** :-(پَ + ړا+ ؤ) [پ،اس ،مذ ،وا ،ج : پړاوُونه، پړاوينه] تکانړه ، د کاظ

—— **اچول**: (اص) د کاروان دمې تـه ايسارېدل ، پړاؤ کـول ، د لړ وخت دپاره دېره کېدل. کډې اړول.

—— **په پړاؤ**: (اص) (۱) منزل په منزل ، ځاے په ځاے (۲) پـه مزه مزه ، پـه دمه دمه

—— **ته رسېدل**: (اص) د پړاؤ ځاے ته رسېدل ، د دمې کولو ځاے ته رسېدل ، منزل ته رسېدل .

—— **کول**: (اص) و ــ پړاؤ اچول.

**پـړ پـړ** :- (پَ + ړْ + پَ + ړْ) [پ ، اس ، صـو] (۱) د مرغـانو د الوتـو اواز (۲) د دستونو په وخت د بادي اودس ماتي اواز ، پړپړے ، پړت پړت

**پړ پړے** :- (پَ +ړْ + پَ + ړَے) [پ،اس، صو] پړ پړ ، د دستونو په وخت د بادي اودس ماتي اواز ، پړت پړت ، پړتاپړوټ ، پړت پړوت، پړتهار.

—— **بندول**: (اص) دستونه بندول، د پړ پړ اواز بندول ، د دستونو علاج کول.

—— **بندېدل**: (اص) دستونه بندېدل ، د دستونو علاج کېدل ، د پړ پړ اواز بندېدل

—— **لګول**: (اص) د بادي اودس ماتي پړ پړ اواز شروع کېدل ، دستونه لګېدل.

**پـــړپنچ** :- (پَ + ړْ + پَ + نْ + چْ) [پ ، ه : پـــړپنج ، اس ، مـــذ ، وا ، ج: پړپنچونه] جګړه ، تکرار ، غوبمه.

—— **اچول**: (اص) جګړه جوړول ، تکرار کول ، پړپنچ کول

—— **کول**: (اص) و ــ پړپنچ اچول.

**پړپـــوس** :- (پَ + ړْ + پُـو + سْ) [پ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پـړپـــوسونه] (۱) سړے ، شڅے (۲) فضول پړسېدلے سړے ، بې کاره.

**پـړت** :- (پْ + ړَ + تْ) [پ ، اس ،صو ، مـذ (مـؤ ، وا: پړتـه ، ج : پړتـې)] ځوړند ، تيټ ، شت.

**پـړت** :- (پَ + ړَ + تْ) [پ (بېتېنـي) اس ، مـذ ، وا] برسـتن ، شـيرک ، کنجن ، نهالۍ.

**پړت** :- (پْ + ړْ + تْ) [پ ، اس صو] و ــ پړپړے

**پړتا پړوت**:-(پْ + ړْ + تا + پْ + ړُوْ + تْ) [پ ، اس ، صو] و ـ پړپړے

**پړتاوول** :- (پَ + ړْ + تا + وَ + وْ + لْ) [پ (ب، خ) مص مت] نسکورول ، پرزول ، راګذارول ، راڅملول.

**پړتاوونه** :- (پَ + ړ + تـا + وَ + وْ + نَـه) [پ (ب، خ) حمص] نسکورونه ، پرزَونه ، راګذارونه ، راڅملونه.

**پړتـاوُونکے** :- (پَ + ړْ + تـا + وَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، (ب، خ) اس، فـاع ، مـذ ، وا ، ج : پړتـاوونکي (مـؤ : پړتـاوونکې) ] نسـکوروُونکے ، پرزوُونکے ، راګذاروونکے ، راڅملوونکے.

**پړتاوېدل** :- (پْ + ړْ + تا+ وې + دْ+ لْ) [پ (ب،خ) مص لا] نسکورېدل ، پرزېدل، راګذارېدل.

**د خوبه راپړتاوېدل** :- (سو) اص. ناڅاپي د خوبه راپاڅېدل.

**پړتاوېدنه** :- (پ+ ړْ + تا + وې + دْ + نَه) [پ (ب، خ) حمص] نسکورېدنه ، پرزېدنه ، راګذارېدنه.

**پړتاوېدُونکے**:- (پَ + ړْ + تا + وې + دُوْ + نْ + کَے) [پ (ب، خ) مف ، مذ ، وا ، ج : پړتاوېـدوُنکي ، (مـؤ : پړتاوېـدونکې) ] نسـکورېدونکے ،

پرزېدونکے ، راگذارېدونکے۔

**پرت پروت** :- (پْ + رِْ + تْ + پْ + رُوْ + تْ) [ پ ، اس ، صوا] و ــ پرېږے۔

**پرتــوب** :- (پْ + رِْ + تــو + بْ) [ پ ، اس ، مــذ] (۱) پرتیــا ، پــر والــے (۲) ملامتیا ، گرم تیا

**پرتوگ** :- (پَ + رِْ + تُوْ + گْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پرتُوگونه ] پردوگ ، پردیگ ، پرتوگ۔

**پرته** :- (پْ + رِْ + تَه) [ پ ، اس، مؤ ، وا ، ج : پرتې ] کورکی ، لومه، دام ، پرکه۔

**پرتهار** :- (پْ + رِْ + تَ + ها + رْ) [ پ ، اس ، صو ] و ــ پرېږے

**پرتیا** :- (پْ + رِْ + تْ + یا) [ پ ، اس ، مؤ] و ـــ پرتوب

**پرچتی** :-(پَ + رِْ + چَ + تَی) [ پ (گن) اس ، مؤ] په کوټه کښې دننه، په دیوال کښې د لوښو د کښېښولو دپاره لگولې شوې تختنه یا د ختو نه جوړه کړې تختنه شان۔

**پرخ** :-(پْ +رَ+ خْ) [ پ، اس ، صوا] پرق ، پرک ، د ښپېرې اواز ، پرس

**پــــر دوگ** :- (پَ + رِْ + دُوْ + گْ) [ پ (ب ، خ) گــن) اس ، مــذ ، وا ، ج : پردوگونه ] و ـــــ پرتوگ

**پُرده** :- (پُ + رِْ + دَه) [ پ (ب ، خ + مر) اس ] باوري ، یقیني ، اتباري ، ډاډه۔

مرجوانه په مټ پُرده دے په دا نۀ دے

چې ئې راوړې مــرغنچیچے مرغلرې  خوشحال

یا لکه:  هائے پرده ئې درې پلارې زېوله مخه  (د مروتو کسرونه)

**پــرده** :- (پَ + رِْ + دَه) [ پ ، اس ، مــؤ ، وا ، ج : پــردې ] (۱) و ـــ پــرده ، (۲) د ساز طرز۔

**پرده پوش** :- (پرده + پو+ شْ) [ پ تر ، اس ص ، مذ ، وا ، (مؤ ، وا: پرده پوشه ، ج : پرده پوشې) ] پرده ساتونکے۔راز نۀ څرگندونکے

**پرده پوشي** :-(پرده+ پو + شِيْ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پرده پوشۍ] پرده ساتنه ، راز نۀ څرگندونه۔

**پرس** :-(پْ + رَ + سْ) [ پ ، (ب ،خ) اس ، صو ] پرکې ، د ښپېرې اواز

ـــــ **ورکول**: (اص) پرک ورکول ، په ښپېره وهل۔

**پرسبن** :- (پَ + رِْ + سَ + بَ + نْ) [ اف : پ (قــاموس) اس ، ص ، مــذ] د باد نه ډک څیز ، پړسېدلے۔

**پرســـمن** :- (پْ + رِْ + سْ + مَ + نْ) [ پ ، اس ، ص ، مـــذ ، وا (مـــؤ، وا: پرسمنه ، ج : پرسمنې) ] (۱) پړسېدلے ، ډډ شوے ، ډډُو ، نرم پوست (۲) نابوده ، بې ښې توښې ، ناکاره (۳) سوړ ، ناراست ، لټ

**پرســنده** :- (پَ + رِْ + سَ + نْ + دَه) [ اف : پ (قــاموس) ص ، مــؤ ، وا ، ج: پرسندې ] (۱) پرسوُونے ، (۲) د غصې نه ډډ ، په غصه

**پرسوب** :- (پَ + رِْ + سو + بْ) [ پارسوب ، ډډُون ، تڼډ والے۔

ـــــ **کول**: (اص) پړسېدلے ، ډډېدل ، تڼډېدل۔

**پرسوبن** :- (پَ + رِْ + سو + بَ + نْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مد ، وا (مؤ ، وا: پرسوبنه ، ج : پرسوبنې) ] پړسېدلے ، ډډشوے۔

**پرسول** :- (پَ + رِْ + سَ + وَ + لْ) [ پ ، مص مت] (۱) ډډه ول ، تڼډوَل (۲) غصــه کــول ، قهــرول ، (۳) حاملــه کــول (د کنځلــو پــه ډول وئیلے شي) (۴) بنۀ وهل ټکول۔

**پرسول** :- (پْ + رِْ + سَ + وْ + لْ) [ پ (ب، خ) مص مت ] پرکول ، په ښپېره وهل ، ښپېره ورکول ، پرک ورکول۔

**پرسولے** :- (پَ + رِْ + سَ + وْ + لَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پرسولي (مؤ : پرسولې)] (۱) ډډ کــړے ، تڼــډ کــړے (۲) غصــه کــړے ، قهــرولے ، (۳) بنۀ وهلے ټکولے شوے۔

**پرسونگ** :- (پَ + رِْ +سَ +وْ +نْ +گْ) [ اف :پ (قاموس) حمص ]و -پړسونه.

**پرسونگے** :- (پَ + رِْ + سُوْ + نْ + گَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پرسُونگي ، (مؤ : پرسُونگۍ) ] پړسېدلے ، ډډېدۀ ،

**پرســـونه** :- (پَ + رِْ + سَ + وْ + نَــه) [ پ ، حمــص] (۱) ډډونــه ، تڼډونــه (۲) غصــه کونــه ، قهرونــه (۳) بنۀ وهنــه ټکونــه (۴) حاملــه کونــه ، (د کنځلو په ډول) ۔

**پرسونه** :- (پْ +رِ +سَ + و + نَه) [ پ (ب،خ) حمص] پرکونه، په ښپېره وهنه

**پرسُوُونکے** :- (پَ + رِْ + سَ + وُوْ + نْ + کَے) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پرسوُونکي (مؤ : پرسوُونکې) ] (۱) ډډوُونکے ، تڼډوونکے ، باد ورکوونکے (۲) غصــه کوونکے ، قهروُول ، (۳)حامله کوونکے ، (د کنځلو په ډول)

**پرسېدل** :- (پَ + رِْ + سې + دْ + لْ) [ پ ، مص لا] (۱) ډډېدل ، تڼډېدل (۲) غصه کېدل ، قهرېدل (۳) حامله کېدل۔

دا د میني نتیجه ده رارسېږي

چې لبمۀ مې په زړا اوپړسېدۀ  عبدالحمید

**پرسېدل** :- (پْ + رِْ + سې + دْ + لْ) [ پ (ب، خ) مص لا] پرکېدل ، په ښپېره وهل کېدل۔

**پرسېدلے** :- (پَ + رِْ + سې + دْ + لَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا، ج : پرسېدلي (مؤ : پرسېدلې) ] (۱) ډډ شوے ، تڼډ (۲) غصه ، په قهر

**پرسېدنگ** :- (پَ + رِْ + سې + دْ + نْ + گْ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــــ پرسېدنه۔

**پرسېدنه** :-(پَ + رِْ + سې + دْ + نَه) [ پ ، حمص] (۱) ډډېدنه ، تڼډېدنه ، پرسېدۀ ، پرسېدنگ ، (۲) غصه کېدنه ، قهرېدنه (۳) حامله کېدنه

**پرسېدنه** :- (پْ + رِْ + سې + دْ + نَه) [ پ (ب ، خ) حمص] پرکېدنــه ، پــه ښپېره وهل کېدنه ۔

**پرســېدونکے** :- (پَ + رِْ + ســې + دُوْ + نْ + کَے) [ پ ، مــف ، مــذ ، وا، ج: پرسېدونکي ، (مؤ : پرسېدونکې) ] (۱) ډوبېدونکے ، تڼډېدونکے (۲) غصه کېدونکے ، قهرېدونکے۔

**پرسېدۀ** :- (پَ + رِْ + سې + دَۀ) [ پ ، حمص] و ــــ پرسېدنه۔

**پرغشــــه** :- (پَ + رِْ + غَ + شَــه) [ اف : پ (قــاموس) اس ، مــؤ ، وا، ج: پرغشې] د پرتوغانښ بگې یا لال گنډه ۔

**پرق** :- (پْ + رَ + قْ) [ پ (سو) اس، مذ ، وا ، ج : پرقونه ] (۱) پرک ، تپک ، ښپېره (۲) ځلق د رڼا ځریکه (۳) د سترگو په ځمبل کښې لږ وخت۔

متل: د یو لاس نه پرق نۀ خېژي۔

ــــــ **ایستل**: (اص) پرک ورکول ، ښپېره ورکول ، ډب اوچتول ، پرق ورکول

ــــــ **ورکول**: (اص) و ــــ پرق ایستل۔

**پرقا** :- (پْ + رَ + قا) [ پ ، ص ، مؤ] (۱) پرکا ، ځلق ، د رڼا ځریکه ، بربښنا ، (۲) په یو مخ د ښپېرو یا د تاړو اواز۔

**پرق پروق** :- (پرق + پْ + رُو + قْ) [ پ ، اس ، ص] ځلق ، ځلا ، چمک ، دمک ، بربښنا۔

**پرقــول** :- (پْ + رِْ + قَ + وْ + لْ) [ پ ، مــص مــت ] (۱) پــر کــول ، ځلقــول بربښول (۲) وهل ، په دواړو لاسو اواز ایستل ، تاړي وهل۔

**لاسونه پرقول** :- (اص) تاړي وهل

**پرقولے** :- (پْ + رِْ + قَ + وْ + لَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا، ج : پرقولي (مؤ، پرقولې) ] (۱) پرکولے، بربښولے ، ځلقولے (۲) وهلے ټکولے

**پرقونــه** :- (پْ + رِْ + قَ + وْ + نَــه) [پ ، حمــص] (۱) پرکونــه ، ځلقونــه ، بربښونه ، (۲) وهنه ټکونه۔

**پړقوونکے** :- (پْ + ړْ + قَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: پړقـوُونکي (مـؤ : پړقـوونکې)] (۱) پـړ کـوونکے ، بربښـوُونکے ، ځلقوونکے ، (۲) وهونکے ، ټکوونکے

**پړقېدل** :- (پْ + ړْ + قې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] (۱) ځلقېدل ، بربښېدل ، پړ کېدل ، (۲) وهلے کېدل۔

**پړقېدلے** :- (پْ + ړْ + قې + دْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پړقېدلي (مؤ : پړقبدلې)] (۱) پړکېدلے ، بربښېدلے ، ځلقېدلے (۲) وهلے شوے۔

**پړقېدنه** :- (پْ + ړْ + قې + دْ + نَه) [پ ، حمص] پړکېدنه ، ځلقېدنه بربښېدنه ، پړقېدۀ ، پړ کېدۀ۔

**پړقېـدُونکے** :- (پْ + ړْ + قـې + دُوْ + نْ + کَـے) [پ ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: پړقېـدونکي (مـؤ : پړقېـدونکې)] پړکېـدونکے ، ځلقېـدونکے بربښېدونکے۔

**پړقېدۀ** :- (پْ + ړْ + قې + دَۀ) [پ ، حمص] و ـــــ پړقېدنه

**پَړک** :- (پَ + ړْ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د لسو نه تر شلو پورې ټولے (۲) د ګډو وړه رمه (۳) خوځېدل ، رپېدل ، ربړدېدل (۴) د دووکسانو د عمر فرق۔

مې باید چې په دا دام کښې
نۀ کړي پړک مرغے ، ځيرک عبدالحمید

ـــــ **اخستل**: (اص) رپېدل ، دګېدل۔ربړدېدل۔

ـــــ **وهل**: (اص) (۱) د یرې او ډار نه رپېدل یا دګېدل (۲) د چرګانو په جنګ کښې د یو بل په خارونو یا خنډانو وهل۔

**پـــړک** :- (پْ + ړَ + کْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] د پېـرلے شـوؤ مرواربدو یو لړ۔

**پـړک** :- (پْ + ړَ + کْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] (۱) ټاکے ، د نـائي د پـاکۍ تېـرۀ کولـو خـرمن (۲) د څیـز د ماتېـدلو آواز ، کـړس، ټـک ، ترک ، (۳) پړق ځلا ، بربښنا۔

ـــــ **چاؤدل**: (اص) ترک چاؤدل ، ماتېدل ، دوه ځایه کېدل۔

**پړکا** :- (پْ + ړَ + کا) [پ ، ص ، مؤ] و ـــــ پړقا

ـــــ **کول**: (اص) ځلقېدل ، رڼا کول ، بربښېدل۔

**پړک مشر** :- (پَ +ړْ +کْ + مَ + شَ + رْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : پړک مشران] د شلو نه تر دېرشو پورې فوځیـانو افسـر ، قوماندان ، پلټون کمانډر۔

**پړکول** :- (پْ + ړْ + کَ + وْ + لْ) [پ ، مص مت] و ـــــ پړقول

**پړکولے** :- (پْ + ړْ + کَ + وْ + لَے) پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : پړکـولي (مـؤ : پړکولې)] و ـــــ پړقولے

**پړکونه** :- (پْ + ړِ + کَ + وِ + نَه) [پ ، حمص] و ـــــ پړقونه

**پړکوونکے** :- (پْ + ړْ + کً + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس، فـا ع ، مـذ ،وا ج : پړکوونکي (مؤ : پړ کوونکې)] و ـــــ پړقوونکے۔

**پړکــه** :- (پَ + ړْ + کَـه) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پړکـې] لومــه ، دام، کوړکۍ ، پړکۍ

دا مرغے په نوړه ناست که هوا غواړي
هـــم هـــوا ئې ګرفتاره په پړکه که مصري خان

ـــــ **کښېښول**: (اص) (۱) پړکه لګول ، لومـه یا کوړکۍ لګول ، (۲) چـل جوړول ، فریب او ټګي کول۔

ـــــ **لګول**: (اص) و ـــــ پړکه کښېښول۔

**پړکۍ** :- (پَ + ړْ + کَ + یَ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـ پړکه

**پړکـے** :- (پَ + ړْ + کَـے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پړکـې]

(۱) پندۍ ، سپینه (۲) د ښخار بوټے تورګاړ۔

**پړکے تړ** :- (پَ + ړْ + کَے + تَ + ړْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] لینګتۍ ، لتۍ ، چاډۍ ، انډۍ ، لینګته۔

**پړکېدل** :- (پ + ړْ + کې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] و ـ پړقېدل

**پړکېـدل** :- (پَ+ ړْ + کـې + دْ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص ،لا] رپېـدل دګېدل ، ربړدېدل۔

**پړکېدلے** :- (پْ + ړْ + کې + دْ + لَے) [پ مف ، مذ ، وا ، ج : پړکېدلي (مؤ : پړکېدلې)] و ـــــ پړقېدلے

**پړکېدلے** :- (پَ + ړْ + کې + دْ + لَے) [اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ،ج : پړکېدلي (مؤ : پړکېدلې)] رپېدلے ، دګېدلے ، ربړدېدلے

**پړکېدنګ** :- (پْ + ړَ + کې + دْ + نْ + ګ) [اف : پ (قـاموس) حمص] و ـــــ پړکېدنه

**پړکېدنګ** :- (پَ + ړْ + کې + دْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پړ کېدنه۔

**پړ کېدنه** :- (پْ + ړْ + کې + دْ + نَه) [پ ، حمص] و ـ پړقېدنه

**پړکېدنـه** :- (پَ + ړْ + کـې + دْ + نَـه) [اف : پ (قـاموس) حمـص] رپېدنـه ، دګېدنه ، ربړدېدنه ، پړ کېدۀ۔

**پړکېــدونکے** :- (پْ + ړَ + کـې + دُوْ + ْ + کَـے) [پ ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: پړکېدونکي (مؤ : پړکېدونکې)] و ـــــ پړقېدونکے۔

**پړکېدُونکے** :- (پَ + ړْ + کې + دُوْ + نْ + کَے) [اف :پ (قـاموس) فـاع، مـذ ، وا ، ج : پړکېدونکي (مؤ : پړکېدونکې)] رپېـدونکے ، دګېـدونکے ، ربړدېدونکے۔

**پړکېدۀ** :- (پْ + ړْ + کې + دَۀ) [پ ، حمص] و ـ پړقېدنه۔

**پړکېدۀ** :-(پَ + ړْ + کې + دَۀ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ پړکېدنه

**پړم** :- (پْ + ړَ + مْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] و ـ پړڼ

**پړمبۍ** :- (پړم + بَ + یَ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د اوبو بړبُوکۍ ، د اوبو خوټېدے۔

**پړمخ** :- (پَ +ړْ +مَ + خْ) [پ،ص ج پړمخې، اپوټه، نسکور، په مخ پرېوتے

**پړمخې** :- (پَ + ړْ + مَ + خې) [پ ، ص] و ـــــ پړمخ

ـــــ **پرېوتل**: (اص) اپوټه پرېوتل ، داسې نسکورېدل چې مخ لاندې راشي پړمخې لوئېدل۔

ـــــ **کول**: (اص) اپوټه کول ، نسکورول۔

ـــــ **کېدل**: (اص) اپوټه کېدل ، نسکورېدل۔

ـــــ **لوئېدل**: (اص) و ـــــ پړمخې پرېوتل۔

**پړنـګ** :- (پْ + ړَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قـاموس) اس، مـذ] (۱) پړنـګ ، د ژړا اول اواز ، بړنګ (۲) منافق ، دوه ژبے

ـــــ **وهل**: (اف) اص۔ژړل ،

**پړنه** :- (پْ + ړْ + نَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] تور ، الزام۔

**پړنه وړنه** :- (پړنه + وْ + ړْ + نَه) [اف : پ (قاموس) ص، مؤ] پړانـه ، وړانـه ، پړه وړه ، ګټه بېلات ، ګرمه ناګرمه ، حق ناحق

ـــــ **کول**: (اف) اص۔پړه وړه کول ، ګټه بېلات کول۔

**پړوالے** :- (پْ + ړْ + وا + لَے) [پ ،اس ، مذ] (۱) پړېدنه ، ملامت کېدنه ، لوېدنه۔

**پړوپـــے** :- (پَ + ړُو + پَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: پړوپـي] کوړوے ، ځلورمه حصه ، د وزن یوه پیمانه۔

**پړوپـۍ** :- (پَ + ړو + پَ + یَـۍ) [پ (ګـن) اس ، مـؤ] د وزن یـوه پیمانـه د اوړي شپاړسمه حصه۔

**پړوستي** :- (پْ + ړو + سْ + تِـيْ) [اف : پ (قـاموس) اس، مـؤ] پلـې ، غوړگې۔

**پړوسي** :- (پَ + ړو + سِيْ) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : پړوسيان] گوانډي ، محلتي۔

**پړوکے** :- (پْ + ړُوْ + کَے) [اف : پ(قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پړوکي] د رسۍ ټوټه ، وړه بیاسته

**پړوکـې** :- (پْ + ړو + کـې) [پ ، (ب، خ) اس ، مـذ ، وا ، ج : پړوکـي] (۱) مصرعه ، د شعر حصه (۲) غړ ، نعره (۳) ټوټه ، ټکړه ، ذره

**پړوکې پړوکې** :- (ب،خ) اص -ټکړې ټکړې، ټوټې ټوټې ، ذرې ذرې پړوکې پړوکې۔

—— **کول**: (اص) ذرې ذرې کول ، ټکړې ټکړې کول ، ټوټې ټوټې کول

—— **کېدل**: (اص) ذرې ذرې کېدل ، ټکړې ټکړې کېدل ، ټوټې ټوټې کېدل۔

**پړوکې پړوکې** :- (اص) و —— پړوکي پړوکي۔

**پړوکي** :- (پَ + رَوْ + کَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: پړوکـي] وړه رمه ، د پړک اسم تصغير۔

**پړول** :- (پْ + ړَ + وْ + لْ) [پ ، مص] (۱) لړول ، پړ کول ، ببلات ورکول (۲) شرمول۔

**پړومبه** :- (پْ +ړو+مْ + بَه) [پ (سو) اس ص ، مؤ ، وا ، ج: پړومې] مانده غوښه ، ډنگره غوښه ، چیچړه ۔

**پړومبې** :- (پْ + ړو + مْ + بې) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] د ماستـو يـا پنير شنې اوبهٔ۔

**پړونـه** :- (پْ + ړُ + وْ + نَـه) [پ ، حمـص] (۱) لړونـه ، مـاتې ورکونـه ، (۲) ملامت کونه ، گرمونه۔

**پړوُونکـے** :- (پْ + ړُ + وُوْ + نْ + کَـے) [پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: پړوُونکي (مؤ : پړوونکې)] (۱) لړوونکے ، مـاتې ورکوونکے ، (۲) ملامت کوونکے ، گرمونکے

**پړ وهونکے** :- (پْ + ړُ + وْ + هُو + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) فـا ع مذ] پړ وهونے ، جريب کش ، د مزکې په پړي کوونکے۔

**پړ وهونے** :- (پْ + ړُ + وْ + هُوْ + نَے) [اف : پ (قـاموس) فـا ع ،مذ ، (مؤ : پړوهونې)] و —— پړ وهونکے۔

**پړوهنه** :- (پْ + ړُ + وْ + هْ +نَه) [اف : پ (قـاموس) اس ص] جريب کش ، د مزکې په پړي کونه۔

**پړونے** :- (پْ + ړُوْ + نَے) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پړُونې] زنانـه څادر ، پټکے۔

تر پړوني ئې صدقه شه
د هغه عـاشـق دستار    رحمٰن بابا

—— **اچول**: (اص) (۱) پړونے په سرول ، زنانـه څادر پـه سرول (۲) پړونے غورځول۔

—— **اخستل**: (اص) رشوت اخستل ، بډې خوړل۔

—— **په سرول**: (اص) و —— پړونے اچول۔

—— **درنول**: (اص) لور خور ته په درنه سترگه کتل ، د لور خور عزت کول ، لور خور ته زياته برخه ورکول۔

—— **درنېدل**: (اص) عـزت زياتېـدل ، نـام اوچتېـدل ، د عـا پـه ډول وئيلے کېږي۔ ''پړونے دې درونډ شه''

—— **ورکول**: (اص) خپلو زنانـاؤ تـه د ښادۍ پـه موقعـه څادر ورکـول۔ تحفه ورکول ، لور خور ته برخه ورکول۔

**پـړه**:- (پْ + ړَه) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پـړې] (۱) لـړوالے ، شکسـت، ماتې (۲) ملامته ، گرمه۔

—— **نيول**: (اص) نارامه نيول ، په ناجائزه خبره ټينگ اودرېدل۔

—— **ور اړول**: (اص) ملامته ورپورې كول ، گرمول ، گرمتياته جوړول۔

**پـړهٔ** :- (پْ + ړهٔ) [پ ، اس ، مـذ ، ج : وا : پـړ] (۱) لـر شـوي ، شکسـت خوړلي ، مات شوي (۲) ملامت شوي ، گرم شوي۔

خوبـريان که بېوفا دي خو هم وړهٔ دي
عاشقان که وفادار وي خو هم پړهٔ دي    رحمٰن بابا

—— **کول**: (اص) (۱) لړول ، ماتې ورکول ، پړول ، ملامتول ، گرمول

—— **کېدل**: (اص) (۱) لړېـدل ، پړېـدل ، مـاتې ورکېـدل (۲) ملامتېـدل گرمېدل۔

**پړه وړه** :- (پړه + وْ + ړَه) [پ ، اس ، مر ، مؤ ، وا ، ج: پړې وړې] و —— پړانه وړانه۔

—— **ښکاره کول**: پړه وړه معلومول ، لرے برے څرگندول۔

—— **کول**: (اص) پړانه وړانه کول ، لرے برے کول۔

—— **کېدل**: (اص) پړانه وړانه کېدل ، لرېدل برېدل ، لرے برے موندل

—— **معلومول**: (اص) و —— پړه وړه ښکاره کول۔

**پُړه** :- (پُ + ړَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پُړې] استر

**پـړه تکي** :- (پْ + ړهْ + تَ + کِـيْ) پښاکې ، پوښاکه ، د چرگ د نيولـو پـه وخت پرړېدل۔

—— **وهل**: (اص) د چرگ د نيولـو يـا پـه لُومـه کښې د گيرېـدلو پـه وخت پرړېدل۔

**پـړه ليـک** :- (پـړه + لـيْ + کْ) [اف : پ ، اس ، مـذ ، وا] لـوظ نامـه ، عهدنامه ، ليکلې اقرارنامه ، معاهده ،

—— **کول**: لوظ نامه ليکل ، معاهده ليکل۔

—— **کېدل**: (اص) لوظ نامه ليکلے کېدل ، معاهده ليکلے کېدل

**پـړي** :- (پْ + ړِيْ) [پ ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : پړيـان] (۱) جـوارگر، جواري کوونکے ، شرطي (۲) پړ چلوُونکے۔

**پړۍ** :- (پَ + ړَ + ى) [پ ، اس ، مؤ ، وا + ج] (۱) کانو گټو هغه ډېرۍ چې لس فټه اوږده ، لس فټه پلنه او يو فټ اوچتـه وي۔ (۲) د غلې د بوجو په قت انبار (۳) اندرپايه (ب، خ)

**پړي پړي**:- (پْ + ړِيْ + پْ + ړِيْ) [پ ، اس مر ، مذ ، ج] قطار قطار وئ کړله مري ، مال ئې بيائي پړي سپړي (مروتو کسرونه)

**پـړے**:-(پْ + ړَے) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: پـړي] رسـۍ ، وابـکے ، د مزري ، سپېسو ، ژغونو ، وښو ، ډيلو پلو يا سڼو غښتلې مزے۔

—— **اوبزاندول**: (اص) (۱) پړے لکول (۲) د نوم وتلي کس په پړي ځنگېدل

—— **اچول**: (اص) (۱) د چاکس يـا ځنـاور غـاړې تـه رسـې وراچول (۲) د قـرض پـور پـه سختـې غوښتلو پـه وخت د چا غـاړې تـه رسـۍ يـا دستار وراچول (۳) د نکاح پابندول۔

—— **اوبدول**: (اص) خبري ته ډيل ورکول ، صبر کول۔

—— **ابښودل**: (اص) (۱) تقسيم كول ، وېشـل ، مزکه يـا کـور پـه پړي کـول (۲) کچ۔

—— **پـړے کېدل**: (سو) اص -رنځـور رنځـور کېـدل ، بـدن سست پست کېدل ، کمزورے کمزورے کېدل۔

—— **په غاړه کول**: (اص) (۱) غاړې ته پړے اچول (۲) حکم منل ، چاته سر ټيټول ، چاته په ننواتې ورتلل ، پړے په غاړه کښې اچول۔

—— **په غاړه کښې اچول**: (اص) و —— پړے په غاړه کول۔

—— **تاوول**: - (اص) په اټېرن پړي ته تاؤ ورکول (۲) څهٔ خبره چاتـه وريـادول

(۳) د شیطانت او وراني خبره کول.

**ـــــ راختسل**: -(اص) د شریک جائیداد د تقسیم دپاره نیت ښکاره کول.

**ـــــ راکښل**: - (اص) (۱) د جالې پړے راځکول (۲) د بټېرانو ښکار کښې د پټيې د یو سر نه بل سر ته پړے رو رو ځکول او رابوول. (۳) په څهٔ خبره کښې دچا ملګرتیا کول، د مخالفې ډلې د غورزولو کوښښ کول.

**ـــــ غړل**: - (اص) پړے غښتل، پړے تاوول، د مزري، سنو، منجو او ژغنو او داسې نورو څیزونو نه مزي تاوول.

**ـــــ غښتل**: - (اص) و ـــــ پړے غړل.

**ـــــ غزول**: - (اص) د پړي د غوټه یا مرچوړې نه تاؤ ویستل.

**د پړو څپلې**: - (سو) اص. د پروړې یا پلالې نه جوړې څپلې.

**پړي شلول**: - (اص) (۱) ګواښ کول، جنګ جګړې ته خامخا ورګډېدل، (۲) د مېلمستیا حد کول.

**په پړي کول**: - (اص) (۱) ناپ کول، کچ کول، مچول (۲) وېشل تقسیم کول.

**د پړي مار جوړول**: - (اص) د ماشومانو د تېوقې په ډول د چا د یرولو دپاره په لارکښې پړے د مار په ډول کښېښول.

**د پړي نه مار جوړول**: - (اص) د څهٔ خبرې نه زیاته قصه جوړول، د لړې نه یره جوړول.

**د زلفو پړي**: - (اص) (۱) د زلفو زنځیرونه (۲) د عشق دام.

**د شګو پړي غښتل**: - (اص) بې فائدې او نهٔ کېدونکي کار ته لاس اچول. تش بوس بادول، عبث کار کول.

**مړي په پړي کول**: - (اص) (۱) قبرستان وېشل (۲) بې ځایه، بې فائدې او عبث کار کول.

**د پوزې پړے کېدل**: - (اص) د پوزې پېزوان کېدل، د څهٔ څیز یا کار نه نهٔ خلاصېدل، د چا نه ډېر مجبوره کېدل.

**د ډیلې پړے**: - (اص) (۱) د ډیلې نه غښتے مزے (۲) نرم پړے، کچه څیز

**پړیت**: - (پْ + ړِيْ + تْ) [ پ (ب، خ) اس، مذ، وا (مؤ، وا: پړیته، ج: پړیتې) ] د یرې نه غلے شوے، پټ په ډار ناست.

**پړیخ**: - (پْ + ړِيْ + خْ) [ اف: پ (قاموس) ص، مذ، وا، (مؤ، وا: پړیخه، ج: پړیخې) ] چیت، پلن.

**پړیخ پزے**: - (پړیخ + پْ + زَے) [ اف: پ (قاموس) اس، ص، مذ، وا، ج: پړیخ پزي (مؤ، وا: پړیخ پزے) ] چیت پېزے یا پوزے. هغه څوک چې پوزه ئې چیته او پلنه وي.

**پړېدل**: - (پْ + ړې + دْ + لْ) [ پ، مص لا] (۱) لړېدل، ماتې خوړل، پړکېدل (۲) ملامته کېدل، ګرمېدل.

**پړېدنه**: - (پْ +ړې + دْ + نَه) [ پ، حمص ] (۱) لړېدنه، ماتې خوړنه، پړ کېدنه، پړېدهٔ (۲) ملامت کېدنه، ګرمېدنه.

**پړېدونکے**: - (پْ + ړې + دُو + نْ + کَے) [ پ، اس، مذ، وا، ج: پړېدونکي، (مؤ، وا: پړېدونکې) ] (۱) لړېدونکے، ماتې خوړونکے (۲) ملامت کېدونکے، ګرمېدونکے.

**پړېدهٔ**: - (پْ + ړې + دَهٔ) [ پ، حمص] و ـــــ پړېدنه.

**پړیس**: - (پ + ړي = سْ) [ اف: پ (قاموس) ص ] بدشکل، بې ډوله دا ټکے اکثر د مخ سره وئیلے شي. لکه پړیس مخے.

**پړیم**: - (پْ + ړِيْ + مْ) [ اف: پ (قاموس) ص، مذ، وا، ج: پړیمونه] د وینې قطره.

**پړین**: - (پْ + ړِيْ + نْ) [ اف: پ (قاموس) لاحقه ] د خوړین سره یو ځائے وئیلے شي. لکه خوړین پړین، یعني ډېر زیات پوخ.

**پړینګ**: - (پْ + ړي + نْ + ګْ) [ پ، اس، صو] (۱) د ژړا اول اواز، چینګ (۲) هغه سپینه ماده چې د بچي پېدا کېدونه اول د غوا نه راپرېوځي (۳) د کولمو دپاسه د غوښې یوه کلکه پرده.

زوت سبق د قناعت به ورنه هېر شي
تېر د عشق که شي بېرون د چا د پړینګ علي خان

**پړینګهار**: - (پْ + ړي + نْ + ګَ + ها + رْ) [ پ، اس، صو ] په یو مخ د ماشومانو د ژړا اواز.

**پړي والا**: - (پْ + ړِيْ + وا + لا) [ پ، اس، ص، مذ] پړي والا، د بانړ یا رسو سوداګر.

**پز**: - (پَ + زْ) [ پ (ب، خ) اس، صو، مذ] پر، ډر، د تېز اواز.

**پز پړېکړے**: - (پز + پْ + ړې + کْ + ړَے) [ اف: پ (قاموس) اس، ص، مذ، وا، ج: پز پړېکړي (مؤ، وا: پز پړېکړې) ] (۱) هغه څوک چې پوزه ئې پړې وي (۲) بې حیا، بې شرم، بې نوه (۳) شرمېدلے، بې عزته شوے.

**پزغمے**: - (پز + غَ + مَے) [ اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: پزغمي] چارګل، تیک، خلے، مېخکے.

**پـزول**: - (پَ + زَ + وْ + لْ) [ پ (ب، خ) مص مت ] بدکاري کول، د کنځلو پهډول کوروالئ ته وئیلے شي.

**پزول**: - (پَ + زَ + وْ + لْ) [ اف: پ (قاموس) مص مت ] ترهول، ویرول، ډرول، د یرې او ډار نه لګول.

**پزولے**: - (پَ +زَ + وْ + لَے) [ پ (ب، خ) مف، مذ، وا، ج: پزولي، (مؤ، وا: پزولې) ] غوولے، د چا سره بد کاري کړې شوے، (د کنځلو په ډول).

**پزولے**: - (پَ + زَ + وْ + لَے) [ اف: پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج: پزولي (مؤ، وا: پزولې) ] . ترهولے، یرولے، ډارکړے، د یرې او ډار نه دګولے.

**پزونګ**: - (پَ + زَ + وْ + نْ + ګْ) [ اف: پ (قاموس) حمص] و ـ پزونه.

**پزونه**: - (پَ + زَ + وْ + نَه) [ پ (ب، خ) حمص ] غوونه، بدکاري کونه (د کنځلو په ډول).

**پزونـه**: - (پَ + زَ + و + نَـه) [ اف: پ (قاموس) حمص] یرونه، ډارونه ترهونه، د یرې او ډار نه دګونه.

**پزوونکے**: - (پَ + زَ + وُو + نْ + کَے) [ پ (ب، خ) اس، فا ع، مذ، وا، ج: پزوونکي) ] بدکاري کوونکے، غوونکے، (د کنځلو په ډول).

**پزُوونکے**: - (پَ + زَ + وُو + نْ + کَے) [ اف: پ (قاموس) اس، فا ع، مذ، وا، ج: پزوونکي ] ترهوونکے، یروونکے، ډاروونکے، د ډار او یرې نه دګوونکے، پزوونے.

**پزُوونے**: - (پْ + زَ + وُوْ + نَے) [ اف: پ (قاموس) اس، فا ع، مذ، وا، ج: پزووني ] و ـــــ پزوونکے.

**پزُوونے**: - (پْ + زُوْ + نَے) [ اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: پزوني] نشتر، الموس

**پز وهل**: - (پَ + زْ + وَ + هْ + لْ) [ اف: پ (قاموس) مص مت ] پچونه وهل، په نشتر وینه ویستل.

**پزوهلے**: - (پَ + زْ + وَ + هْ + لَے) [ اف: پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج: پزوهلي ] هغه څوک چې په نشتر وینه تري نه ایستلے شوې وي. پچونه وهلے شوے.

**پزوهنه**: - (پَ + زْ + وَ + هْ + نَه) [ اف: پ (قاموس) حمص] په نشتر وینه

ایستنه ، پچونه وهنه۔
**پز وهونکے** :- (پَ +زْ + وَ + هُو + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پزوهونکي ] په نشتر وینه ایستونکے ، پچونه وهونکے
**پزه** :- (پَ + زَه ) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج : پزې] پوزه ، پېزه ، سونډه۔
**ـــــ پربکول**: - (اف ) اص ۔ (۱) پوزه غوڅول ، (۲) شرمول ، شرمنده کول ، د دوؤ دناستې ویستل۔
**ـــــ پربکېدل**: - (اف ) اص ۔ (۱) پوزه غوڅېدل (۲) شرمېدل ، شرمنده کېدل۔
**ـــــ په دېوالۀ پاکول**: - (اف) اص ۔ (۱) پوزه په دېوال صفا کول (۲) زیات خوارېدل ، د پولۍ پرک ته کښېناستل۔
**ـــــ په هوا نیول**: - (اف) اص۔ ډېره لوئي کول ، کبر کول ، ځان لوے شمارل۔
**ـــــ تروه کول**: -(اف) اص۔ غصه کېدل ، قهرېدل ، د غصې نه ډېډېدل
**ـــــ ټک وهل**: - (اف) اص۔ و ـــــ پزه سوڼ کول۔
**ـــــ سوڼ کول**: - (اف) اص۔ پوزه سڼول ، د پوزې ګندګې په سڼولو باهر ویستل ، پزه ټک وهل۔
**ـــــ نۀ درلودل**: - (اف) اص۔ بې پوزې کېدل ، پوزه نۀ لرل (۲) بې حیا او بې شرمه (۳) شرمېدل۔
**ـــــ وتل**: - (اف) اص۔ پوزه وتل ، د بیمارۍ په وجه پوزه پخېدل۔
**ـــــ وینې کېدل**: - (اف) اص۔ د پوزې نه وینې روانېدل یا بهېدل۔
**پزې ښبښ کښل** :- (اف) اص ۔ (۱) د پوزې څوکه اوکښل (۲) زیات مانده کېدل ، ډنګرېدل۔
**په پزه مچ نۀ پرېښودل** :- (اف) اص ۔ (۱) مغرورېدل ، ځان ته غره کېدل (۲) بې شرمه کېدل (۳) غصه ناک کېدل ، د حده زیات تریخېدل۔
**تر پزې ډکېدل** :- (اف) اص ۔ (۱) تر پوزې ډکېدل (۲) زیات مړېدل ، ډېر زیات خوراک کول۔
**پزے** :- (پَ + زَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] بوئین ، ورمه ، ورم
**پـــزي** :- (پَ + زِيْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مـؤ] غـټ والے ، تنومندي ، څورب والے۔
**پزېـدل** :- (پِ + زِي + دِ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص لا] (۱) پـه جـوش کښې راتلل ، خوټکېدل ، یشبېدل (۲) زخمي کېدل ، ژوبل کېدل ۔
**پزېدل** :- (پْ + زِي + دْ+ لْ) [ پ (ب، خ) مص لا] تیزونه اچول ، پز پز کول
**پزېـدلے** :- (پْ + زِي + دْ + لَـے ) [ اف : پ (قـاموس) مـف ،مـذ ، وا ، ج: پزېدلي ، (مؤ ، وا: پزېدلې ) ] خوټکېدلے ، په جوش کښې راغلے ، یشبدلے۔
**پزېدنه** :- (پْ +زِي + دْ + نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص ] پزېدۀ ، یشبېدنه ، خوټکېدنه ، په جوش کښې راتلنه۔
**پزېدنه** :- (پْ + زِي + دْ + نَه) [ پ (ب، خ) حمص] پزېز کونه ، په یو مخ تیزونه اچونه۔
**پزېدونکے** :- (پْ + زِي + دُو + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پزېـــدونکي (مـــؤ ، وا: پزېـــدونکې ) ] یشـــبېدونکے خوټکېدونکے ، په جوش کښې راتلونکے۔
**پزېدونکے** :- (پْ + زِي + دُوْ + نْ +کَے ) [ پ (ب، خ) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پزېدونکي ، (مؤ ، وا: پزېدونکې ) ] پز پز کوونکے ، تیز پرېښونکے ، په یو مخ باد ایستونکے۔

**پزېدۀ** :- (پْ + زِي + دَۀ ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ پزېدنه
**پزین** :- (پَ + زِيْ + نْ) [ اف : پ ، ص ، مذ] د پوزې نه جوړ ، د پوزې یا انډېرې سره تعلق لرونکے۔
**پژرکے** :-(پْ + ژْ + رْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، ج: پژرکي ( مؤ ، وا: پژرکې ) ] بړرګې ۔ حملې ته تیار ، د غصې نه ډک۔
**پـــژ مُردګـــي** :- (پْ + ژْ + مُ + رْ + دَ + ګـيْ ) [ فـا ، اس ، ص ، مـؤ ] (۱) خفګـان ، خفتـین (۲) مړسـپین تیا ،مړغوجنتیـا ،مړاوے والـے جینجړ والے (۳) مایوسي نا امیدي۔
**پژ مُرده** :- (پژ + مُ + رْ + دَه ) [ فا ، اس ، ص ، مذ ، وا] (۱) خفا ، مړسپین ، مړغوجن ، مړاوے ، جینجړ ، (۲) مایوسه ، نااُمیده۔

د ژونـــــدون له تازګۍ پژمرده شۀ
دم ئې نۀ واهۀ بې دم لکه مرده شۀ حمید

**پژے**:-(پَ + ژَے ) [ اف : پ (قاموس )اس ، مذ] پړے ، جُثه ، تنه بوده۔
**پژے**:-(پَ + ژَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پړے ، جُثه ، تنه بوده۔
**پړل** :- (پَ + ژْ + لْ یا پْ + ګْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] تراشل
**پړوے** :- (پْ + ژْ + وَے یا پْ + ګْ + وَے ) [ اف : پ (قاموس )اس مذ وا ، ج : پړوي ] د تنستې سر او پینو ته لګېدلے لرګے۔
**پـړے** :- (پْ + ژَے یـا پْ + ګَـے ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: پړي] (۱) و- پژے (۲) لېچه ، د ګوتو نه تر څنګلې پورې د لاس حصه
**ـــــ نۀ درلودل**: - (اف) اص ۔ ډېر مانده او کمزورے ، زیات ډنګر، په بدن خوار۔
**پر پړي وهل**:- (اف) اص۔ څۀ خبره د چا غوږ ته اچول ، خبردارے ورکول۔
**پس** :- (پَ + سْ ) [ فا ، اس ] بیا ، روستو ، پس له دې۔

پـــه ژونـدون ئې دیدن نۀ وینم هالۀ یم
پس له مرګه که د مار د ګور طواف کا خوشحال خان

**پس** :- (پُ + سْ ) [ پ ، ا ، صو ، مذ] (۱) نرے اواز ، معمولي شان اواز (۲) پسکۍ ، پسکه ، د هوا خارجېدو اواز۔
**ـــــ پس کول**: -(اص) رو رو خبرې کول ، پټې پټې خبرې کول ، په غریو کښې خبرې کول ، پس پسے کول ، پس پسکې کول ، پسهار کول۔
**ـــــ پسکې کول**: - (اص) و ـــــ پس پس کول۔
**ـــــ پسې کول**: - (اص) و ـــ پس پس کول۔
**پسات** :- (پَ + سا + تْ) [ پ ، ع ، فسـاد ، اس ، مـذ ، وا ، ج پسـاتونه] فساد ، شر ، جګړه۔ په شاغلي نواز چرنګ پسات د سۀ (د مروتو کسرونه)
**ـــــ کول**: - (اص) فساد کول ، شر کول ، جنګ جګړه کول۔
**ـــــ کېدل**: - (اص) فساد کېدل ، شر کېدل ، جنګ جګړه کېدل۔
**پساتي** :- (پَ + سا + تيْ ) [ پ ، فا ، فساد ، اس ، مذ ، وا ، ج: پساتیان] فسادي ، بدمعاش ، وران ، شېطان ، جګړمار۔
**پســاري** :- (پَ + ســا + رِيْ) [ پ ، س : پنســاري ، اس ، مــذ ، وا ، ج : پساریان ] هغه دوکاندر چې د دوائي جاړې بوټې وغېره خرخوي۔

هر دارو د رنځ شربت معجون پکښې موندۀ شي
دے زمـــا دیـــوان لکـــه دوکـــان د پســـــاري مصري خان

**پساله** :- (پْ + سا + لۀ ) [ پ ، اس ، مذ ] کالے پترے ، زېور ، ګاڼه

په پسالۀ به مینه کا چې رنګ ئې نۀ وي
تـــۀ کلګرنګه څۀ محتاج دپساله ئې خوشحال

**پسان** :- (پْ + سا + نْ) [ پ ، اس مذ ، وا ، ج : پسالونه ] د څرخ کاڼے ، سان
**پـس انـداز**:- (پَ + سْ + اَ + نْ + دا + زْ) [ فـا ، اس ، مـذ ] بچـت ، بـاقي

روستو پاتې ، فائده ، گټه.

**پساؤ** :- (پَ + سا + ؤ) [اف : پ (قاموس) اس،مذ] (۱) پاتې شوې بسورو (۲) د سېلاب گنگخړې یا گنگخړے.

**پسائي** :- (پِ + سا + ئيْ) [ه ، اس ، مؤ] د اېلو یا وړولو مزدوري.

**پس پا** :- (پَ + سْ + پا) [فا ، اس ، مذ] شاته ، روستو.

رقیبانو مې لــه ورایه که پس پائې دوست
څۀ جادو کړم چې رامې شي په رائے دوست حمید

**پست** :- (پَ + سْ + تْ) [فا ، ص ، مذ ، وا (مؤ : پسته)] (۱) بښکته لاندې ، ټيټ (۲) کمینه ، ردیل ، ذلیل ، د پربوتي خوئي خاوند (۳) د سست تابع مهمل.لکه سست پست.

منفعل ئې گل تر مخه
تر بنۀ قد ئې سروِ پست
د عاشق خاطر او خیال لکه دریاب دے
چې چپه ئې کله لوړه کله پسته
یو زۀ داغ لرم په زړۀ د نادرستو
ددې داغ علاج ونۀ کړو سستو پستو خوشحال

**پستکې** :- (پَ + سْ + تَ + کَ + یَې) [پ ، اس ، مؤ] (۱) پخکې ، پوځکې ، پستوکې (۲) هر نازک او نرم څيز (۳) د مېنې په ډول بچې ته وئیلے شي.

**پستنه** :- (پَ + سْ + تَ + نَه)× [پ ، ص ، مؤ] (۱) واپس ، بېرته ، پسه روستو (۲) اُلټې ، بکې ، قې ،قے.

په ستنه دلاړې ملۀ ځینې ستانۀ شو
لــه پــلې د پــروانه وزردانۀ شو حمید

—— **اوسېدل**: - (اص) (۱) بېرته پاتې کېدل (۲) ځان ساتل ، ځان ژغورل

—— **کول**: - (اص) (۱) په شا کول ، ځټ ته کول ، بېرته زغلول (۲) (ب، خ) قې کول، اُلټې کول ، باکې کول.

—— **کېدل**: - (اص) (۱) په شاکېدل ، ځټ ته کېدل ، بېرته کېدل (۲)اُلټې کېدل ، قې کېدل.

**پستو** :- (پَ + سْ + تُو) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پستوگان] پېشانه ، پس خونه ، د بادشاه یا د امیر هغه سامان چې ددۀ د روانېدو نه پس ورپسې وړلے شي.

**پستوالے** :- (پَ + سْ + تْ + وا + لَے) [پ ، ص ، مذ] (۱) نرمي ، پوستوالے ، (۲) کمینه توب ، ذلیل توب (۳) ټيټوالے ، لاندې والے

**پستور** :- (پَ + سْ + تَو + رْ) [اف : پ ، اس ، مذ] پرخه ، نرم باران ،نري څاڅکي ، پسته وور.

**پستورگے** :- (پَ + سْ + تْ + وَ + رْ + گے) [اف :پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پستورگي (مؤ : پستورگې)] هغه گډ چې پشم ئې نرم وي.

**پستوړه** :- (پَ + سْ + تْ + وُ + ړه) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پاستۀ اوړۀ ، نرمه دُوړه.

**پستوکے** :- (پَ + سْ + تُو + کَے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج: پستوکي] و —— پستکې.

**پستول** :- (پَ + سْ + تَ + وْ + لْ) [پ ، مص مت] (۱) نرمول ، مېده کول (۲) بنۀ وهل ډبول.

**پستول** :- (پ + سْ + تو + لْ) [پ (عا) انگ ، پستل ، اس ، مذ ، وا ، ج: پستولونه] تماچه ، توپنچه .

**پستونگ** :- (پَ+سْ+تَ+وْ+نْ+گْ) [اف: پ (قاموس) حمص]و - پستونه

**پستونه** :- (پَ + سْ + تَ + وْ + نَه) [پ ، حمص] (۱) نرمه ونه ، مېده کونه (۱) بنۀ وهنه ډبونه ، په وهلو وهلو د بوسو سخے جوړونه.

**پستوُونکے** :- (پَ + سْ + تَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پستوُونکي (مؤ : پستوُونکې)] (۱) نرموونکے ، مېده کوونکے ، پستوونے (۲) په وهلو وهلو د بوسو سخے جوړوونکے بنۀ ډبوونکے.

**پستووُنے** :- (پَ + سْ + تَ + وُوْ + نَے) [پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج: پستووُني (مؤ : پستووُنې)] و —— پستوونکے.

**پستوُونے** :- (پَ + سْ + تَ + وُوْ + نَے) [پ (خ) اس ، مذ ، وا ، ج: پستووُني] یوه ونه چې لرگے ئې نرم وي او لیندې ترې نه جوړولے شي.

**پسته** :- (پَ + سْ + تَه) [پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : پستې] (۱) نرمه ، ملائمه (۲) د پنډۍ غوښه.

—— **خولۀ**: - (اص) (۱) نرمه خولۀ، ملائمه خولۀ (۲) خوږه خولۀ

متل :- په پسته خولۀ پردے هم خپل شي.

**پسته** :- (پَ + سْ + تَه) [پ ، ص ، مؤ] بیا ، روستو ، بل وار.

**پسته** :- (پَ + سْ + تَه) [اف : پ (قاموس) اس امر] د اس د روستو کولو دپاره وئیلے شي.

—— **کول**: - (اف) اص.د اس د روستو کولو دپاره اواز ویستل.

**پسته** :- (پَ + سْ + تَه) [فا ، اس ، مؤ] یوه خشکه مېوه

لب ئې نمکین لــکــه پسته معدت د قېدو
نۀ دے چا لیدلے په جهان کنبې نمکدان عزیز مصري خان

**پسته وور** :- (پَ + سْ + ته + وو+ رْ) [اف :پ (قاموس) اس ،مذ] و -پستور

**پستي** :- (پَ + سْ + تيْ) [فا ، ص ، مؤ] (۱) ټيټوالے ، لاندې والے (۲) کمینه توب ، ذلیل توب.

په صراط کنبې بلندي ده پستي نشته
که هموار دروممي په لار د شریعت څوک معزالله خان

**پستې** :- (پَ + سْ + تې) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د ژبې او حلق تر مېنځه نرمه خوږند غوښه.

**پستېدل** :- (پَ + سْ + تې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] (۱) نرمېدل ، مېده کېدل (۲) په وهلو وهلو د بوسو سخے جوړېدل (۳) خبرې ته راضي کېدل ، غاړه کښېښول.

**پستېدنگ** :- (پَ+سْ+تې +دْ +نْ+گْ) [اف:پ (قاموس) حمص] و- پستېدنه

**پستېدنه** :- (پَ + سْ + تې + دْ + نَه) [پ ، حمص] (۱) پستېدۀ، پستېدنگ ، نرمېدنه ، مېده کېدنه (۲) بنۀ وهلے کېدنه (۳)غاړه کښېښنونه ، خبره مننه.

**پستېدونکے** :- (پَ + سْ + تې + دُوْ + نْ + کَے) [پ، مف ، مذ ، وا ، ج : پستېدونکي (مؤ : پستېدونکې)] (۱) نرمېدونکے ، مېده کېدونکے (۲) بنۀ وهلے کېدونکے

**پستېدۀ** :- (پَ + سْ + تې + دۀ) [پ ، حمص] و —— پستېدنه

**پسخاک** :- (پَ + سْ + خا + کْ) [پ اس ، مذ] و —— پخساک

**پسخند** :-(پَ + سْ + خَ + نْ + دْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پسخندونه] ټوقې ، ملنډې ، پیشارې.

—— **کول**: - (اص) پسخند وهل ، ټوقې کول ، ملنډې کول.

—— **کېدل**: - (اص) ټوقې او ملنډې کېدل ،

—— **وهل**: - (اص) و —— پسخند کول.

**پسخندے** :- (پَ + سْ + خَ + نْ +دَے) [پ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پسخندیان (مؤ، ج : پسخندیانې)] ټوقمار ، ملنډې کوونکے.

—— **کول**: - (اص) د ټوقو ملنډو نشانه جوړول.

—— **کېدل**: - (اص) د ټوقو ملنډو نشانه جوړېدل.

**پس خوره** :- (پَ + سْ + خُوْ + رْ + دَه) [فا ، اس ، مؤ] جوټه ، پاتې شوے خوراک.

**پسخول** :- (پَ + سْ + خَ + وْ + لْ) [پ ، مص مت] و ــ پخسول

**پسخول** :- (پَ + سْ + خْ + وَ + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پسخولونه] (۱) د ارې د خولې بُوره (۲) پوګ

**پسخه** :- (پَ + سْ + خَه) [پ ، اس ، مؤ] و ــ پخسه

**پسخېدل** :- (پَ + سْ + خې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] و ــ پخسېدل

**پسر** :- (پ + سَ + رْ) [فا ، اس ، مذ، وا] زوے ، بچے

امين هېڅوک موندۀ نۀ شي
يـــار کـــه وردر دي که پسر مصري خان

**پسرلنے** :- (پْ + سَ + رْ + لَ + نَے) [اف : پ (قاموس) اس ، ص مذ ، وا ، ج: پسرلني ، (مؤ : پسرلنی)] د پسرلي يا سپرلي سره تعلق لرونکے

**پسرلے** :- (پْ + سَ + رْ + لَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پسرلي] سپرلے ، بهار ، څرمُونے.

دا حميد د يار د خط له غمه ژاړي
که بـاران د پسرلي په در در راغے حميد

**پسرور** :- (پْ + سَ + ر + وَ + رْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج: (مؤ ، وا: پسروره ، ج : پسرورې)] سور ور ، پلن چې عرض ئې زيات وي

**پسرور** :- (پَ + سْ + رُوْ + رْ) [اس ، معر ، مذ] د پنجاب په سيالکوټ ضلع کښې د يو تحصيل نوم.

**پسکاوڼ** :- (پُ + سْ + کا + وَ + ڼْ) [پ ، اس ، ص ، مذ] پسکن ، هغه څوک چې زياتې پسکې اچوي ، پسکڼ

**پسکاوڼه** :- (پَ + سْ + کا + وَ + ڼَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: پسکا وڼې] غونځه ، يوه ونه چې سرې سرې دانې کوي.

**پسکن** :- (پَ + سْ + کَ + نْ) [پ ، اس ، مذ ، ص (مؤ ، وا ، پسکنه ج: پسکنې)] و ــ پسکاوڼه

**پسکڼ** :- (پَ + سْ + کَ + ڼْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مد ، (مؤ ، وا: پسکڼه ، ج: پسکڼې)] و ــ پسکاوڼه

**پسکه** :- (پَ + سْ + کـه) [پ ، اس ، مؤ، وا ، ج : پسکې] پوسکۍ پسکۍ.

ــ **اچول**: - (اص) (۱) پوسکۍ اچول ، پسکۍ اچول ، پسکه پرېښـول (۲) يربدل ، ډربدل.

ــ **پرېښول**: - (اص) و ــ پسکه اچول.

**پسکۍ** :- (پَ + سْ + کَ + يۍ) [پ ، اس ، مؤ] و ــ پسکه

**پس مانده** :- (پَ + سْ + مـا + نْ + دَه) [فا ، اس ، مذ ، مؤ ، وا ، ج: پس ماندګان] (۱) د ترقۍ نه شاته پاتې (۲) وارث ، د مړي عزيز (۳) بچت ، بقايا.

**پس منظر** :- (پَ + سْ + مَ + نْ + ظَ + رْ) [فا ، اس ، مذ ، وا] (۱) د شا نظاره (۲) د څۀ واقعې تېره سلسله يا حصه چې په هغه واقعه پوره رڼا غورزوي.

**پسنجر** :- (پَ + س + نْ + جَ + رْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج (مؤ ، وا: پسنجره ، ج : پسنجرې)] مسافر ، سورلي ، په ټانګه ، بس يا ريل کښې سفر کوونکے.

**پسند** :- (پَ + سَ + نْ + دْ) [فا ، اس ، مذ] خوښ ، زړۀ ته تېر

خپل کارونه ورته پسند دي مګر څکه
خو د پسند د چې پسندلي نۀ وي داش مصري خان

ــ **کول**: - (اص) خوښول ، پسندول ، پسندل

ــ **کېدل**: - (اص) خوښېدل ، پسندېدل.

**پسندل** :- (پْ + سَ + نْ + دَ + لْ) [پ ، مص مت] خوښول ، غوره کول ، پسند کول ، پسندول.

زۀ رحمٰن بې ياره خوب و خندا نۀ کړم
بې د نـۀ ده خـوب خـندا پسـندلې مـا

**پسندلے** :- (پْ + سَ + نْ + دْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پسندلي] خوښ کړے ، غوره کړے.

مـه درومـه رحمٰانـه پـه خـلاف د دانايـانو
مينـه د دنيـا پسـندلې نـۀ ده هـېڅ دانـا
ډېر دي ما ليدلي نکته دان هر چا پسندل
واړه تـا خجل کـــړه تـۀ ئې ګل هغه خريز مصري خان

**پسندنه**:- (پْ + سَ + نْ + دْ + نَه) [پ ، حمص] خوښونه ، غوره کونه

**پسندول** :- (پَ + سَ + نْ + دَ + وْ + لْ) [پ، مص مت] و ــ پسندل

**پسندونه** :- (پَ + سَ + نْ + دَ + وْ + نَـه) [پ ، حمـص] خوښـونه ، غـوره کونه ، پسند کونه.

**پسندوونکے** :- (پَ + سَ + نْ + دَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع مذ ، وا ، ج : پسندوُونکي (مؤ ، پسندوُونکې)] خوښوونکے ، غوره کوونکے ، پسند کوونکے ، پسندوونے.

**پسندوُونے** :- (پَ + سَ + نْ + دَ + وُوْ + نَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا، ج : پسندووني (مؤ : پسندوُونې)] و ــ پسندوُونکے

**پسنده**:-(پَ + سْ + نْ + دَه) [پ ، ص ، مؤ] خوښه ، زړۀ ته نزدې ، قبوله

پوهه هغه دے چې په ښو پسنده وي
چې بدې پسنده کا ، کار مسخره وي مصري خان

**پسندے** :- (پَ + سَ + نْ + دَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د شپشتو يا ببړو لوبه.

**پسندېدل** :- (پَ+سَ+نْ+دې + دْ + لْ) [پ، مص لا] خوښېدل، پسند کېدل

**پسندېدنه** :- (پَ + سَ + نْ + دې + دْ + نَـه) [پ ، حمـص] پسـندېدۀ ، خوښېدنه.

**پسندېدُونکے** :- (پَ + سَ + نْ + دې + دُوْ +نْ + کَے) [پ ، مف ، مذ ، وا، ج: پسندېدونکي ، (مؤ : پسندېدونکې)] خوښېدونکے

**پسندېدۀ** :- (پَ + سَ + نْ + دې + دَۀ) [پ ، حمص] و ــ پسندېدنه

**پسنېدل** :- (پَ + سْ + نې + دْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] پسېدل ، پس پس کول ، پس پسے کول، رو رو خبرې کول.

**پسنېدنګ** :- (پَ + سْ + نـې + دْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ــ پسنېدنه.

**پسنېدنه** :- (پَ + سْ + نې + دْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] پسنېدنګ ، پس پس کونه ، رو رو خبرې کونه ، پسېدنه ، پسنېدۀ.

**پسنېدُونکے** :- (پَ + سْ + نې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پسنېدُونکي (مؤ : پسنېدونکې)] پسېدُونکے ، پس پس کوونکے ، رو رو خبرې کوونکې.

**پسنېدۀ** :- (پَ + سْ + نې + دۀ) [اف : پ (قاموس) حمص]و ــ پسنېدنه

**پسوا** :- (پَ + سْ + وا) [اف : پ (قاموس) اس] پشلا ، پسې شا ، پشې شا.

**پس و پېش** :- (پَ + سو + پې + شْ) [فا ، اس ، مذ] (۱) انه بانه ، کونه ګوته ، ډيل (۲) وړاندې روستو.

پس و پېش چې عالمان د هر يو فن دي
خـوشه چين ددۀ د عـلـم د خـرمن دي حميد

ــ **کول**: - (اص) انه بانه کول، کونه ګوته کول، په څۀ کار کښې ډيل کول

**پسور** :- (پْ + سو + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] سور ، بر ، عرض ، پلن والے۔

**پسور ور** :- (پسو + رَ + وَ + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پسرور ، پلن و سور ور۔

**پسول** :- (پْ + سو + لْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پسولونه ، پسالهٔ]
کالے ، گاڼه ، زېور ، کالے پترے

عشق د عقل په تدبیر چلاوۀ نۀ شي
په دې ناوې نۀ جوړېږي پسول د چا حمید

**پسولل** :- (پسو + لَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] ښائسته کول، ډولې کول ، کالي وراچول ، پسولول۔

**پسولول** :- (پسو + لَ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت]و- پسولل۔

**پسولونه** :- (پسو + لَ + وْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] ښائسته کونه ، ډولے کونه ، کالي پټري وراچونه۔

**پسونے** :- (پَ + سُوْ + نَے) [اف : پ (قاموس) اس ،مذ ، وا ، ج : پسوني (مؤ : پسونۍ)] (۱) په څۀ کښې ناست (۲) باره ، آړ ، هغه ځاے چې څوک په څۀ کښې پکښې کښېني۔

**پســه** :- (پْ + ســه) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پسُـونه] (۱) نـروز ، ښـۀ مضبوط او تیار چېلے۔ (۲) کم عقل سړے۔

هسې زۀ بېخوده خاندم په هجران کښې
لـکه خـانـدي د پسۀ سر په اوروالولے حمید

**پسه** :- (پْ + سه) [پ ، اس ، مؤ] پس ته ، پس ددې نه ، بیا

د منصور په دود ئې مست که له اوله
صـــــدارت له هغه پسه په دار راکړه مصري خان

**پسه** :- (پَ + سه) [اف :پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: پسې] یو خوراکي څیز

**پســهار** :- (پُ + سْ + هـا + رغ) [پ ، اس ، صـو ، مـذ] پـس پـس ، پټـې خبرې ، پسکې ، پسهارے۔

**پسهارے** :- (پُ + سْ + ها + رَے) [پ ، اس ، مذ) و ـ پسهار

**پسې** :- (پَ + سې) [پ ، اس] (۱) ورپسې ، روستو ، شـاته (۲) اف : د پېزار پُونده۔

لـکـه زۀ په یار مئین یم ، بل به نۀ وي مئین هسې
لکه زۀ پسې غمجن یم ، بل به نۀ وي غمجن هسې خوشحال خان

ـــــ **اخستل**: - (اص) (۱) په چا پسې کېدل ، پـه چـا پسې لګېدل (۲) د چا دپاره څۀ څیز اوچتول او ورپسې وړل۔

ـــــ **پـره کـول**: - (اص) (۱) د چا پـه تـلاش کښـې خلق پرېښـول ، څوک پـه خلقو لټول (۲) په چا پسې سپي پرېښول ، (۳) په چا پسې د بدې وېنا دپاره خلق لګول۔

ـــــ **پره کېدل**: - (اص) (۱) د چا پـه تـلاش کښـې ګرځېدل (۲) پـه چـا پسـې سپي پرېښولے کېدل۔

ـــــ **پرېښول**: - (اص) د چـا پـه وجـه څۀ کـار یـا عـادت پرېښـول (۲) پـه چـا پسـې سپي توکول۔

ـــــ **پرېوتل**: - (اص) (۱) په چا پسې غورزېدل یـا نسـکورېدل (۲) د چا پـه غم کښې کټ نیول یا بیمارېدل (۳) د چا په تلاش کښې بـل ملـک تـه تلل۔

ـــــ **پسې** : - (اص) روستو روستو ، ورپسې ورپسې ، د ټولو نه روستو

ـــــ **تلل**: - (اص) (۱) پـه چا پسې روانېدل ، د چا پـه منډه تلل (۲) د چا خبره منل ، د چا په وېنا عمل کول۔

ـــــ **کتل**: - (اص) (۱) په چا پسې نظر اچول ، د چا په تلو ورپسې ځیر ځیر کول (۲) څوک په نظر کښې ساتل ، د چا په کار خیال ساتل

ـــــ **کښېناستل**: - (اص) ډېر ډېل کول ، تاخیر کول ، زیات ځنډ کول

ـــــ **کېدل**: - (اص) (۱) په چا پسې روستو روستو تلل ، په چا پسې لګېدل (۲) په چا پسې ورا نیـول (۳) پـه چـا پسـې روستو هـر وخت د ورانـې خبرې کول (۴) د چا ډېر تنګول (۵) په چا مئینېدل۔

ـــــ **ګرځېدل**: - (اص) (۱) په چا پسې روستو روستو تلل (۲) د چا تـلاش کول ، د چا لټول۔

**بلا پسې** :- (اص) ورک ، سرخوړلے ، بې تپوسه۔

**بُوټے پـه پسـې کـول** :- (اص) دېـګ د لاتـدې د اور بلولـو دپـاره بـوټے کښېښول۔

**وطن پسې لټول** :- (اص) د چا په تلاش کښې په ټول ملک کښې ګرځېدل ، زیات تلاش کول۔

**پسي** :- (پ + سِيْ) [اف : پ (قاموس) ص] مغرور ، غره ، ځان ته ډډ

**پسېدل** :- (پَ + سې + دْ + لْ) [پ ، مـص لا] (۱) پـس پـس کـېدل ، پټـې پټې خبرې کول ، پسنېدل (۲) پخېدل۔

**پسېدنګ** :- (پَ +سې +دَ + نْ + ګْ) [اف :پ (قاموس) حمص] و- پسېدنه

**پسېدنه** :- (پَ + سې + دْ + نَه) [پ ، حمص] (۱) پسېدۀ ، پس پس کونـه ، پټې پټې خبرې کونه (۲) پخېدنه۔

**پســېدونکے** :- (پَ + ســې + دُوْ + نْ + کَـے) [پ ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : پسېدُونکي ، (مؤ : پسېدونکې)] (۱) پس پس کوونکے ، پټې پټې خبرې کوونکے (۲) پخېدونکے۔

**پسېدۀ** :- (پَ + سې + دَۀ) [پ ، حمص] و ـــ پسېدنه۔

**پسېره** :- (پَ + سې + رَه) [اف : پ (قاموس) اس ج (۱) پرسېره ، برسېره ، بې له دې ، علاوه ددې نه (۲) پاس ، باندې ، دپاسه

ـــــ **پردے**: - (اف) اص۔ علاوه ددې نه ، ددې نه سېوا۔

ـــــ **کول**: -(اف) اص (۱) څرګندول، ظاهرول (۲) پاس خېژول ، پورته کول

ـــــ **کېـدل**: - (اف) اص ۔(۱) څرګندېـدل ، ظاهرېـدل (۲) پـاس خېـژولے کېدل ، پورته کېدل۔

**پسي شا** :- (پَ + سِيْ + شا) [پ ، ص] پشا ،پسوا ، پشي شا ، پـه غـبر موجودګی کښې۔

مخامخ دې په ثنا په صفت سر شي
سـل بـــلا درباندې وائي پسې شا خوشحال

ـــــ **خبرې کول**: - (اص) غیبت کول ، په چا پسې روستو رغېدل۔

ـــــ **کول**: - (اص) شټ ته غُورزول ، د څۀ څیز سره زړۀ نۀ لګول۔

ـــــ **وئیل**: - (اص) غیبت کول ، په چا پسې روستو خبرې کول۔

**پسینه** :- (پَ + سِيْ + نَـه) [پ ، ص ، مـذ] (۱) روستنے ، (۲) هغـه فصـل چې د وخت نه روستو کرلے شوے وي۔ کسرے

وخت دې علیخانـه کـه څـوک کـر د محبت کـړي
تخـم بـه دې ورک شـي کـه لـه دې شـي پسـینه

ـــــ **کول**: - (اص) فصل د وخت نه روستو کرل ، کسرے فصل کرل

**پسـیه** :- (پَ + سْ + یَـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پسـیې] بُسرئ ، د شپون هغه انعام چې د وري یا د لېلۍ په پېدا کېدو ئې د مال خاوند ورکوي۔

**پش** :- (پْ + شْ) [پ (ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج : پشې] لُوهار ، د اوسپنې کار کوونکے ، اُستکار ، پېښ ، اینګر۔

**پش** :- (پْ + شْ) [پ (ب، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : پشون (مؤ ، وا : پشـه ، ج : پشې)] د زمیندارانو هغه اُستکار چې د لرګي او اوسپنې دواړو

کار کوي.یعني هم لوهار وي او هم ترکاڼ. متل: پشـه پشـګیري کوه ، خپله غریبي کوه.

**پش** :- (پَ + شْ + [پ (ب،خ) اس ، صو ، مذ] د مار اواز.

**ـــــ وئیل**: - (ب ، خ) اص ، د مار روانېدل.

**پشا** :- (پَ + شا ) [پ ، مص ] (۱) پـه شـا بانـدې ، پـه اوږه ، مټ دپاسـه (۲) په شټ ، روستو ، روستاړے.

**ـــــ اچول**: - (اص) (۱) کمبله ، څادر یا بړستن په ولو اچول یـا کنبـېښـول (۲) په شا غورزول.

**ـــــ اخستل**: - (اص) (۱) پـه شـا وړل ، پـه شـا کـول و پـه اوږو اوچتـول (۲) روستو زغلول.

**ـــــ کول**: -(اص) (۱) په شا باندې اوچتول ، په اوږو کنبـېښـول (۲) روستو کول ، په شټ تمبول ، (۳) هېرول.

**ـــــ کېدل**: - (اص) (۱) پـه شـا بانـدې اوچتېـدل ، پـه اوږو کنبـېښـودے کېـدل (۲) روسـتو کېـدل ، پـه شـټ کېـدل (۳) پښـېمانېدل ، لېپخورېدل.

**ـــــ وړل**: - (اص) (۱) پـه شـا اخسـتل ، پـه شـا کـول ، پـــه اوږو اوچتـــول (۲) برداشت کول . زغمل.

**پشار** :- (پْ + شا + رْ ) [پ ، اس ، مذ] پېروے ، ملاتې ، ارياش.

**پشاور** :- (پ + شا + وَ + رْ ) [پ ، اس ، معر] د صوبه سرحد مشهور ښـهر چې د خېبر تـاريخي درې په لمن کښې پروت دے.د صوبې صدر مقام هم دے.پېښور ، پښاور،خېبر پښتونخوا.

**پشاورے** :- (پ+ شا + وَ +رَے ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پشـاوري (مؤ : پشاورۍ) ] پښاورے ، د پشـاور اوسېدونکے ، د پېښـور سره تعلق لرونکے.

**پــش پــش** :- (پَ + شْ + پَ + شْ ) [پ ، (ب،خ) اس صـو] پـشِ پـش ، ورکوټي ماشوم ته د متيازو کولو په وخت وئيلے شي.

**پشـت** :- (پْ + شْ + تْ ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] (۱) د چرګـې پـه خېټه کښې د اګۍ ځاے (۲) د يوې چرګې په يو مخ خو اګۍ.

**پشت** :- (پْ + شْ + تْ ) اف : پ (قاموس) اس ، صو ، مذ] پشته ، پشې ، پيشې شه ، د پيشو يا بليکۍ د شړلو اواز.

**پشت** :- (پَ + شْ + تْ ) [ پ (ب،خ) اس ، مـذ] د نـيم پختـه اُوربشـو وږي چې په اور وراتۀ شي او بيا پـه مېچن اوړۀ کړے شي نو پشت ورتـه وائي.غريبان خلک ئې د خوراک په ډول خوري.

**پشـت** :- (پُ + شْ + تْ ) [فـا ، اس مـذ] (۱) شـا ، شـټ ، مـلا (۲) نسـل خاندان ، کورنۍ ، خېل ، پېړۍ.

د سمند له پشته اولوېده په مزکه
لکـه ګـل د رېـدي تللے تـار پـه تـار ؤ

د نا اهله زويه پلار به څۀ ښادي کا
چې له پشته ئې لئين پسر پيدا شۀ مصري خان

**ـــــ په پُشت**: - (اص) نسل په نسل ، پېړۍ په پېړۍ.

**پشتاره** :- (پُ + شْ + تا +رَه ) [فا ، اس، مؤ] ګېډۍ، بوج، انبار ډېرۍ، دلۍ.

د نبـاتـــو حـلـــوه مه خوره چې منت ورسره مل وي
خپل کشکاب د خپل محنت خوره په سر اوږه پشتاره خوشحال

**په پشتارو** :- (اص) په دلو دلو ، په انبار انبار ، ډېر زيات.

**پشـتو** :- (پَ + شْ + تـو ) [پ ، اس ، مـؤ ، وا] (۱) پښـتو ، د پښـتنو ژبـه (۲) د پښتنو دود دستور ، غېرت.

**پشتوب** :- (پش + تو + بْ ) [پ (ګن) اس ، مذ] د لوهارۍ کار ، پشګيري

**پشتوب** :- (پش ، تـو + بْ ) [پ (ب، خ) اس ، مذ] د لوهارۍ او ترکانۍ کار ، پشګيري ، پشګيرت.

**پشتون** :- (پَ + شْ + تُوْ + نْ ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پشـتانۀ ، پشـتونۀ ( مؤ، وا : پشتنه ، ج : پشتنې ) ] پښتون ، د پښتنو د نسل نه ، پشتين

**پشته** :- (پُ + شْ + تَه ) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پُشتې ] (۱) بند ، ټکر ، د سېلاب د اوبـو د مخې نيولـو دپاره د خټـو کـاڼو جوړ کړے ډېرے (۲) هغه چمړه يا کپړه چې د کتاب شاته ئې جلد ساز لګوي.

**پُشتي** :- (پُ + شْ + تيْ ) [پ (ګن) اس، مؤ ، وا ، ج : پشـتيانې] ټيـک د کوټې دېوال ، د مضبوطيا دپاره جوړه کړې دونکاچه.

**پُشتي** :- (پُ+ شْ + تيْ ) [پ، اس] (۱) مرسته (۲) يو ورکوټے ښکاري سپے

**پشتين** :- (پَ + شْ + تيِ + نْ ) [پ (بنو) اس ، مذ ، وا ، ج : پشـتونه (مؤ ، وا : پشتنه ، ج : پشتنې ) ] و ـــــ پشتون.

**پشخل** :- (پَ + شْ + خَ + لْ ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] ګنګـرے نـازه وړے ، کنګـرے.د سېلاب د اوبو راوړے خاشاک.

**پشخورکه** :- (پ + شْ + خْ + وَ + رْ + کَه ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] يـوه غرئيزه غونډه ونه چې مېوه ئې وړه شان وي.

**پش غوږه** :- (پَش + غْ + وَ + ژَه يا ګَه ) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص، مـؤ ، وا ، ج پش غوږې ] سپين غوږې بزه يا چېلۍ.

**پشک** :- (پ + شَ + کْ ) [پ (ظفر) اس ، مذ] پيشـک ، سـپوږے ، د بـرص مرض يو قسم.

**پشکال** :- (پَ + شَ + کا + لْ ) [پ ، اس ، مذ ، وا] (۱) د بشـکال مياشـت ، ساوڼ (۲) د اورې د بارانونو موسم.

د چشمانـو لـــه بـــارانه
په رُخسار ئې پشکال شي رحمٰن بابا

**پشکالۍ** :- (پَ + شَ + کا + لَ + يَې ) [پ ، اس ، مؤ] بـارانۍ ، برسـاتۍ ، د باران کوټ.

**پشکالے** :- (پَ + شَ + کا + لَے ) [پ ، اس ، مذ] په پشکال کښې رېبلـې شوي اوچ واښۀ ، بشکالے.

**پشـکه** :- (پَ + شْ + کَه ) [پ (سو) اس ، مؤ ، وا ، ج : پشـکې] د اوبـو يـا وينې داره.

**پشکې ختل** :- (سو ) اص .(۱) د اوبو يـا وينـو دارې وتـل (۲) د غصـې پـه حالت کښې د خولې نه ځګونه او لاړې وتل.

**پشکې وهل** :- (اص) دارې وهل.

**پشګيرت** :- (پش + ګيْ + رَ + تْ ) [پ (ب،خ) اس] و ـــ پشتو ب (ب،خ)

**پشګيري** :- (پش + ګيْ + رِيْ ) [پ (ګن) اس ، مؤ] و ـــ پشتو ب (ګن)

**پشګيري** :- (پش + ګيِ + رِيْ ) [پ (ب، خ) اس ، مؤ] و ـــــ پشـتو ب (ب ، خ )

**پشلا** :- (پْ + شْ + لا) [اف : پ (قاموس) ص ] پسي شا ، پشي شا ، په شا ، په غېر موجودګۍ کښې.

**پشـلره** :- (پَ + شْ + لَ + رَه ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] اخنـک ،يـو قسم واښۀ.

**پشم** :- (پَ + شَ + مْ ) [پ ، اس ، مذ ، وا] (۱) نرے باران ، پرخه (۲) ډېر نازک او نرم وېښتۀ ، (۳) وړۍ

په مخ دې پشم د خولو دے مستې
کـــه ورېـــدلے دے شبنم په ګلزار مصري خان

**ـــــ ټـو کېـدل**: - (اص) (۱) شـونډه شـنه کېـدل ، پـه مـخ وېښـتۀ راتلـل . (۲) مخ خولې کېدل.

**ـــــ وربدل**: - (اص) نرے باران وربدل ، پرخه دوربدل.

**پشــمکه** :- (پَ + شْ + مْ + کَـه ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج: پشمکې] زمی ، یو قسم بوټے چې کالي جامې پرې وینځلے شي.

**پشمے** :- (پَ + شْ + مَے ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پشـمیان] هغه جونګړے (د اوښ بچے) چې عمر ئې کال دوه وي.

**پشمین** :- (پَ + شْ + مِيْ + نْ) [پ ، اس ، ص ، مذ] پشم لرونکے ، نرم ، د ورې نه جوړ.

**پشمینه** :- (پَ + شْ + مِيْ + نَه) [فا ، اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج: پشـمینې] د ورې نه جوړه جامه.

د اطلسو قبا غواړي نۀ ئې مومې

له ناکامه دې خرقه کړه پشمینه رحمٰن بابا

**پشنګ** :- (پ + شَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] هغه قچر چې د کاروان په سر کښې روان وي.

**پشواز** :- (پ + شْ + وا + زْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پشوازونه] خلکے ، د لښتے ، ننیوي یا ګډوُوني ګُلداره درنه خلکه.

**پشونګړي** :- (پ + شو + نْ + ګْ + ړي) [پ ، اس ، معر] د پشاور په ضلع کښې د یو کلي نوم.

**پشـه** :- (پْ + شْ) [اف : پ (قـاموس) اس صـو مـؤ] پیشـته ، پشـې ، د پیشو یا بلي د شړلو اواز.

**پشئي** :- (پَ شَ + يَئ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] الـوئ ، تـراړه ډاډه ، نیم پخته ، غنم یا چنې چې په اورکښې ورتولے شي.

**ـــــ کول**: - (اف) اص. تراړه کول ، ډاډه کول ، نیني کول.

**پشې** :- (پَ + شَې) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] د ماشـومانو یـوه لوبـه چې دوه ماشومان ئې په کاښي سره کوي.

**پشے** :- (پْ + شَے) [اف : پ (قاموس) اس ،مذ ، (مؤ ، وا: پشی)] هغه ګډ یا پسۀ چې غوږونه ئې ورکوټي او غونډ شان وي.

**پشي** :- (پَ + شِيْ) [پ ، اس ، صو] پشې پشه ، پیشته ، د پشو د شړلو اواز.

**پشې** :- (پَ + شې) [پ ، اس صو] د پیشو د شړلو اواز ، پیشته ، پشه پشي.

**پشـېدل** :- (پَ + شـې + دْ + لْ) [پ (ب، خ) مـص لا] د مـار اواز ویسـتل مـار روانېدل.

**پشېدنه** :- (پَ + شې + دْ + نَه) [پ (ب، خ) حمص] د مار آواز ویسته ، د مار روانېدنه.

**پشـېدونکے** :- (پَ + شـې + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، (ب، خ) مف ، مذ وا ، ج : پشېدونکي] پش پش کوونکے مار ، روانېدونکے مار.

**پشېرلے** :- (پْ + شي + رْ + لَے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، ج: پشـېرلیان (مؤ ، وا: پشېرلۍ ،ج : پشېرلیانې)] دوه کلن سېرلے هغـه سـېرلے چې عمر ئې دوه کاله وي. دوه کے سېرلے.

**پشي شا** :- (پَ +شِيْ +شا) [اپ، ص] پسي شا ، په غېر موجودګۍ کښې.

پشي شـــا پـــه صبر زهد زړۀ ډاډه کړم

دوي بروېه مې خطا شي وار له مخه حمید

**ـــــ ژغېدل**: - (اص) پسي شا خبرې کول ، په چا پسې روستو غږېدل.

**پشېمان** :- (پْ + شي + مـا + نْ) [پ ، اس ، مـذ (مـؤ ، وا: پشـېمانه ، ج: پشېمانې)] پښېمان ، نادم ، شرمنده ، لېپخور.

**پشېماني** :- (پْ + شي + ما + نِيْ) [پ ، اس ، مؤ] پښېماني ، شرمندګي ، نادمتوب ، لېپخورتیا.

چې ژوندي سره ښۀ نۀ کا ، پس لـه مرګه ارمان څۀ کا

پشېماني هاله سود نۀ کا ، چې ساعت تېر شي له واره مصري خان

**پښین** :- (پ + شِيْ + نْ + [پ ، اس ، معر] د بلوچستان په صوبه کښې د کویټې په علاقه کښې د یو ځاے نوم.

**پښن** :- (پَ + شْ یا پَ + خْ ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج: پښنـان ، (مؤ ، وا: پښنه ، ج : پښنانې)] پش ، لوهار ، اینګر.

**پُښن** :- (پُ + شْ یـا پُ + خْ) [اف : پ (قـاموس) اس صـو ، مـذ] پـش ، د مار اواز.

**ـــــ وهل**: - (اف) اص. د مار اواز ویستل ، د مار روانېدل.

**پښانګه** :- (پْ + شا + نْ + ګه یا پْ + خا + نْ + ګه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پښانګې] د مشک خانګه یا پښه.

**پښاور** :- (پ +شا + وَ +رْ یا پ + خا + وَ +رْ) [پ ، اس ، معر] و- پشاور.

چې پکښې شیرین باران دے

پښاور تــر هـــر د یـــار ښۀ خوشحال خان

**پښـــاوندے** :- (پْ + شـا + وَ + نْ + دَے یـا پْ + خـا + وَ + نْ + دَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پښاوندي] څناور د پښې ترلو پړے یا رسۍ.

**پښښۍ** :- (پَ + شْ یا پَ + خْ + بَ + نَ + يَی) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] د څرمنې نه جوړه بنۍ چې لوهار یا اینګر ئې په خپل دُکان کښې د اور تېزولو دپاره استعمالوي.

**پښت** :- (پَ + شْ + تْ یا پَ + خْ + تْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : پښتونه] پُشت ، نسل ، پېړۍ.

**پُښت** :- (پُ + شْ + تْ یا پُ + خْ + تْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] اوږۀ کړې توت.

**پښـتنخواه** :- (پَ + شْ + تُ + نْ + یـا پَ + خْ + تُ + نْ + خـواه) [پ، اس ، مؤ] پښـتونخواه ، د پښـتنو علاقـه ، هغـه سیمه چې پښـتانۀ پـرې مېشتۀ دي.

نوره واړه پښتونخواه په ځاے مېشته ده

خـو یو زۀ دې زماني پکښې منصور کړم خوشحال خان

**پښـتنواله** :- (پَ + شْ + تَ + نْ + یـا پَ + خْ + تَ + نْ + وا + لَـه) [پ ، اس ، ص ، مــؤ] پښــتونوالي ، پښــتنوالي ، د پښــتنو دود دســتور ، پښتونګلوي ، پښتونواله

**ـــــ کول**: - (اص) پښتونولي کول ، غېرت او ننګ کول.

**پښـتنوالي** :- (پَ + شْ + تَ + نْ یـا پَ + خْ + تَ + نْ + وا + لِيْ) [پ ، اس ، ص ، مؤ] و ـــــ پښتنواله.

**پښتنه** :- (پَ + شْ + تَ + نَه یا پُ + خْ + تَ + نَـه) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پښـتنې] (۱) تپـوس ، پوښـتنه ، اجـازت (۲) بیمـار پرسـي ، د بیمـار تپوس (۳) جواب طلبي.

نۀ پښتنه دا حوال کړے

نۀ له چا کړے شرم ویره مصري خان

متل: په پښتنه سرے مکې ته رسي

په پښتنې چې به چا ورنزدې دے ځنګ کړ

هــر یـــو بــه رنځ بیان د بــل په رنګ کړ حمید

**ـــــ کـول**: - (اص) (۱) پوښـتنه کـول ، تپـوس کـول (۲) جـواب غوښـتل ، جواب طلبي کول ، (۳) د بیمار تپوس کول (۴) اجازت غوښتل

**پښـتني** :- (پَ +شْ +تَ + نـيْ یـا پَ + خْ + تَ + نـيْ) [پ ، ص] د پښـتون سره ترلے کار ، د پښتون د دود دستور سره سم ، په پښتونولي پوره.

**پښــتو** :- (پَ +شْ +تـو یـا پَ + خْ + تـو) [پ ، اس ، هـؤ] (۱) پښـتو ، د پښـتنو ژبـه (۲) د پښـتنو دود دسـتور ، ننـګ غېـرت ، متـل: د پښـتو کاڼے په اوبوو کښې نۀ ورستېږي.

د خوشحال ختـک پـه ژبـه برکـت شـه
چې وئيـل کـا پـه پښتـو لـه هـره بابـه

ـــــ **پالل**: - (اص) (۱) ننګ او غېرت کول ، پت پالل (۲) وفاداري کول
ـــــ **پرېښول**: - (اص) پښتو وړکول ، په پښتو اور لګول ، د ننګ خيال نۀ ساتل ، د پښتو سر ټسول.
ـــــ **پُوره کـول**: - (اص) (۱) ضد پـوره کـول ، خپلـه خبـره سـرته رسـول ، (۲) وفاداري کول (۳) خپل فرض ترسره کول.
ـــــ **ټينګول**: - (اص) د ننـګ غېـرت کـار کـول ، د پښـتو پـه دود دسـتور کلک اودرېدل.
ـــــ **سرته رسول**: - (اص) (۱) خپـل ضـد پـوره کـول ، هـوډ سـرته رسـول ، (۲) د پښتو غېرت کار کول.
ـــــ **شرمول**: - (اص) د پښتو غېرت نه پرېوتے او سپک کار کول ، ډېر بد کار کول.
ـــــ **کول**: - (اص ) (۱) ننـګ کـول ، غېـرت کـول (۲) چـا سـره پـت پـالـل . (۳) په ضد اودرېدل ، د بل خبرې ته غوږ نۀ کښېښول.
ـــــ **ګټل**: - (اص) غېرت ګټل ، ننګ په ځاے کول ، توره کول.
ـــــ **نۀ درلودل**: - (اص) پښتو نۀ لرل ، د غېرت ، پت او ننګ نه خالي
ـــــ **نۀ لرل**: - (اص) و ـــــ پښتو نۀ درلودل.
ـــــ **وړکول**: - (اص) و ـــــ پښتو پرېښول.
ـــــ **وئيل**: - (اص) په پښتو ژبه خبرې کول.

**پر پښتو تېرېدل** :-(اص) بې غېرتي کول، د پښتو غېرت نه پرېوتے کار کول.
**پر پښتو درېدل** :- ( اص ) په پښتو اودرېدل ، پـه ننـګ اودرېـدل ، د غېـرت د کار کولو دپاره ملا تړل.
**په پښتو اودرېدل** :- ( اص ) و ـــــ پر پښتو درېدل.
**پـه پښتو اور لګول** :- ( اص ) د پښـتو سـر ټسـول ، پښتـو پرېښـول ، پښـتو وړکول ، د ننګ خيال نۀ ساتل.
**د پښتو سر ټسول** :- ( اص ) و ـــــ پښتو پرېښول.
**پښتورګے** :- ( پُ + ښْ + تَ +وَ + رْ + ګے يـات پُ + خْ + تَ + وَ + رْ + ګے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پښتورګي ] (۱) ګُرده ، بډُوګے ، بډوګے (۲) اف : يوه غرئيزه ونه چې د بادامو په شان مېوه نيسي.
**پښتون** :-( پَ + ښْ + تُو ْ + نْ يا پَ + خْ + تُو ْ + نْ ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پښتـانۀ ، (مؤ ، وا : پُښتـنه ، ج : پښتـنې) ] (۱) پشـتون ، د پښـتنو د نسل نه ، د پښتون قام يو سړے (۲) غېرتي ، د ننګ او پت خاوند ، د پښتو خاوند ، ضدي.

معـزالله لـه مينـې ځـۀ لـه مـا جارباسـې
وابه نۀ وړم ځېل مې کړے دے پښتون يم
ځان به مړ د عشق په جبل کړمـه ناصـحه
وابـه نـۀ وړم زۀ حميـد هسـې پښـتون يـم
يـو بـه نسـم مغلوالـه د رقيـب سـتا
کـه زۀ کـړے وم رښـتيا لـه پښـتنې زۀ

قول او بول په ژوندون نۀ شي نور ولې
ځکـه ځـان پـه قـول وژنـې پښـتانۀ حميد

**پښتونخوا** :- ( پَ + ښْ + تُو ْ + نْ يا پَ + خْ + تُو + نْ + خوا ) پ ، اس ، مؤ] و ـــــ پښتنخواه.

د تمـامې پښـتونخواه لـه شـاعرانو
معـزالله عبـدالرحمٰن دے منتخـب

**پښتونګلوي** :- ( پَ + شْ + تُوْ + نْ يا پَ + خْ + تُوْ + نْ + ګَ + لْ + وِيْ ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ] و ـــــ پښتنواله.
**پښتونواله** :- ( پَ + ښْ + تُو ْ + نْ يا پَ + خْ + تُو ْ + نْ + وا + لَه ) [ پ ، اس ، ص ، مؤ] و ـــــ پښتنواله.
**پښـتونولي** :-( پَ +ښْ + تُو ْ + نْ + يـا پَ + خْ + تُو ْ +نْ + وَ + لِيْ ) [ پ، اس ، ص ، مؤ ] و ـــــ پښتنواله.
**پُښتــې** :- ( پُ + ښْ + تَ + يـې يـا پُ + خْ + تَ + يـې ) [ پ ، اس ، مـؤ] پُشتې ، د اړوکو پنجره.

که په زور عبن رستم پهلوان شې
په لحد به دې پښتې شي کسکر مصري خان

ـــــ **برېښول** - (اص) چاته په غبرکښې ډېر زور ورکول ، زيات ټينګول.
ـــــ **برېښدل**: - (اص) (۱) د زيات زور ورکولو له کبله پُښتې دردېدل (۲) د بيمارۍ په وجه پُښتې خوږېدل ، د نمونيا يا برېښ په مرض کښې پُښتې برېښېږي.
ـــــ **راوتل**: - (اص) د ډېرې کمزورۍ له کبله پښتې بهر ته راوتـل . پښـتې ښکاره کېدل ، د اړوکو پنجره جوړېدل ، ډېر مانده کېدل زيات ډنګرېدل.
ـــــ **ښکاره کېدل**: - (اص) و ـــــ پښتې راوتل.
ـــــ **ماتول**: - (اص) (۱) پښتې ټوټې ټوټې کول (۲) چاتـه پـه سينه کښې زيات زور ورکول (۳) زيات وهل ډبول.
ـــــ **ماتېدل**: - (اص) (۱) پښتې ټوټې ټوټې کېدل ، (۲) د ډېـر زور لـه کبله پښتې دردېدل.
ـــــ **نيول**: - (اص) (۱) د رد يا ډېرې خندا په وجه خپلې پښـتې پـه لاسـونو نيول. (۲) اريان دريان او بکه خولۀ اودرېدل.

**پُښـکې** :- ( پُ + ښْ + کَ يـا پُ + خْ + کَ ) [ اف : پ (قـاموس) اص ، صـو ، مذ] د مار يا داسې د بل ځيز اواز.
**پښکي** :- ( پْ + ښْ + کِيْ يا پْ + خْ + کِيْ ) [ اف : پ (قـاموس ص] پکښـې ، دننه ، په مېنځ کښې.
**پښلي** :- ( پْ +ښْ + لِيْ يا پْ +خْ + لِيْ ) [ اف : پ (قاموس) مؤ ] د څرمنې موزه.
**پُښلے** :- ( پُ + ښْ + لَے يا پُ + خْ + لَے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پُښـولي ] پنزېب ، بابل ، پښولے.
**پښ مار** :- ( پْ + ښْ يا پْ + خْ + ما + رْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پښمارا ن ]هغه سړے چې د لوهار يا اينګر بنۍ ته باد ورکوي.
**پښـنـدے** :- ( پْ +ښْ + نْ دَے يـا پ + خْ + نْ + دَے ) [ اف : پ (قـاموس) اس و مـذ ، وا ، ج : پښـندي ] پښـونـدے ، پخنـدے ، پخونـدے ، زولنه ، هغه پړے چې پښې پرې ترلے شي ، ډُوبک.
**پښـنګه** :- ( پْ + ښْ + نْ ګـه يـا پْ + خْ + نْ + ګـه ) [ اف : پ (قـاموس) اس ،مؤ ] دوه ښاخې ، دوه غاشې ، ډېګور
**پښوکي** :- ( پْ + ښُو + کِيْ يا پْ + خُو + کِيْ ) [اف : پ (قاموس) اس ، ج ] هغـه جـورابې چـې پنجې ئـې نـۀ وي . غـړے ، دا قسـم جـورابې سپايان په پښو کوي
**پُښـول** :- ( پُ + ښْ + وْ + لْ يـا پُ + خْ + وْ + لْ ) [ اف : پ (قـاموس) مـص مت] (۱) مار ، غوا يا په بل داسې څيز د پش پش اواز ويسـتل . (۲) د لوهار يا اينګر په بنۍ باد پُوکول ، (۳) غصه کول ، قهرول
**پُښولے** :- ( پُ + ښْ + وَ + لَے يا پُ + خْ + وَ + لَے ) [ اف : پ (قـاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پښـولي (مؤ : پښـولې)] پـه مـار يـا بـل ځيـز د پـش اواز کړے شوے

**پښولی** :- (پْ + شو + لَی یا پْ + خو + لَی) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پښولي] و ـــ پُښلے

**پښـونـدے** :- (پْ + شْ + وَ + نْ + دے یـا پْ + خْ + وَ + نْ + دَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا : ج پښوندي] و ـــ پښندي.

**پُښونه** :- (پْ + شْ + وْ + نَه یا پُ + خْ + وْ +نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱) په مار یا په بـل څيز د پش پش اواز کونه (۲) د لوهار یـا اينګر بنی ته باد ورکونه.

**پښـوونکے** :- (پُ + شْ + وُو + نْ + کے یـا پُ + خْ + وُوْ + نْ + کَے) [اف: پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پښـوونکي (مؤ: پښـوونکې)] (۱) په مار یا په بل څيز د پش پش اواز کوونکے. (۲) د لوهار يـا اينګر بنی ته باد ورکوونکے.

**پښويه** :- (پْ + شو + يه یا پْ + خو + يـه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د ژبې قاعدې ، صرف نحو.

**پښه** :- (پْ + شَـه يـا پْ + خَـه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پښـې] (۱) پشـه ،پخه، خپه (۲) خپل ، کورنی (۳) حصه ، برخه، بخره

نۀ دې پښې د عبادت دي

نـۀ دې لاس دے د سخا معزالله خان

ـــ **اخيستل**: - (اص) (۱) د ماشوم اول اول قدم اخستل ، د ماشوم په پښو روانېدل ، د ماشوم په پښو کېدل (۲) چاخ چاخ تلل ، قدم تېزول.

ـــ **ارتول**: -(اص) (۱) تړلې پښه خلاصول (۲) د کوژدن نه پس او د وادۀ نه وړاندې چنغول ته د چنغلې کور ته د تلو راتلو اجازت ورکول

ـــ **ارتېدل**: - (اص) (۱) تړلے پښه خلاصېدل ، (۲) چنغول ته د چنغلې کور ته د تلو راتلو اجازت ورکولے کېدل.

ـــ **اړول**: - (اص) (۱) په څۀ څيز پښـه د پاسه کښېښـودل ، (۲) سوړېدل (۳) بد کاري کول (۴) بر کېدل ، په چا زور ورکېدل (۵) قبضه کول.

ـــ **اړېدل**:-(اص) د پښتې اډوکے بې ځايه کېدل ، پښـه بې بنده کېدل ، پښه اوښتل ، پښه اوړېدل.

ـــ **اوړېدل**: - (اص) و ـــ پښه اړېدل

ـــ **اوږدول**: - (اص) تلل راتلل زياتول ، چا سره تعلقات زياتول.

ـــ **اوښتل**: - (اص) و ـــ پښه اړېدل.

ـــ **ايښودل**: - (اص) څۀ ځاے ته ورتلل ، پښه لګول.

ـــ **پر پښه اړول**: - (اص) (۱) خپله پښه د چا بل په پښـه اړول . (۲)بېکـاره کښېناستل ، کار نۀ کول.

ـــ **پـر تېرول**: - (اص) (۱) تلۀ پر تېرول ، پښه په څۀ څيز راڅکول ، (۲) په څۀ څيز ځان ناغرضه کول (۳) کار په پټه کول.

ـــ **په پښې راغونډول**: - (اص) (۱) معامله راغونډول ، (۲) تعلقات رو رو ختمول ، ځان رانغښتل.

ـــ **په رکاب**: - (اص) (۱) تيار ، تګ ته بډې وهلې (۲) مرګ ته نزدې

ـــ **په منځ کښې ايښـودل**: - (اف) (اص) د دوؤ کسـانو پـه مېـنځ کښـې د روغې جوړې دپاره ثالث جوړېدل.

ـــ **تر خپل خرڅوړي تېرول**: - (اص) د خپل وس او طاقت نه بهر کار کول

ـــ **تر کنده ختل**: - (اف) اص. په نوم کېدل ، په نکاح کېدل.

ـــ **تر کنده ورايستل**: - (اف) اص (۱) پښه د زولنې نه ايستل (۲) په نامه کول ، په نوم کول (۳) د خپل وس نه بهرکار کول.

ـــ **ټولول**: - (اص) (۱) پښـه راګردول ، (۲) د چا سرې يا د يـو ځـاے نه ځان رانغښتل ، يو ځاے ته تګ راتګ کول.

ـــ **ټينګول**: - (اص) (۱) پښـه پـه يـو ځـاے کښـې مضبوطه کښېښـول ،

(۲) څۀ کار په پخه اراده او استقامت سره کول (۳) د څۀ کار کولـو نـه انکار کول.

ـــ **خلاصول**: - (اص) و ـــ پښه ارتول.

ـــ **خلاصېدل**: - (اص) و ـــ پښه ارتېدل.

ـــ **ښـوئېدل**: - (اص) (۱) راغورځېـدل ، (۲) دوکـه خـوړل ، دوکـه کېـدل (۳) لړېدل ، شکست خوړل ، د مقابلې جوګه نۀ پاتې کېدل .

ـــ **لوڅول**: - (اف) اص. د څۀ کار په تلاش کښې ډېر کوښښ کول.

ـــ **نيول**: - (اص) (۱) پښه ټينګول ، (۲) بانه کول (۳) وار کول ، صبر کول ، توقف کول (۴) يو ځاے ته نۀ راتلل.

ـــ **وهل**: - (اص) (۱) مقـابلې تـه پټـون ټېـول ، (۲) د چرګ د مستـې پـه وخت په چرګه راڅرخېدل او وزر ګرځر وهل.

**پښې اسمان ته نيول**: - (اص) کبر او مستـي کـول ، مغـرور کېـدل ، د چا نـه ځان ورکېدل.

ـــ **اګرې ته کول**: -(اص) مړ کېدل ، سا وتل ، د ژوند اوربشه ختمېدل.

ـــ **ابله**: - (اص) (۱) پښه يبل ، بربنډې پښې ، پښـې رمنډې ، چې پېـزار ئې په پښو نۀ وي. (۲) خوار غريب.

ـــ **اخستل**: - (اص) (۱) پښې اوچتول ، قدم تېزول (۳) د ځاروي پښـې پـه پېسو اخستل.

ـــ **ارتول**: - (اص) د ورزش په ډول ګرځېدل راګرځېدل.

ـــ **اړول**: - (اص) (۱) پښې ټينګول ، پښې څۀ څيز تـه ورکول (۲) د چا مقابلې ته اودرېدل .

ـــ **اوچتول**: - (اص) پښې پورته کول ، پښې اخستل.

ـــ **اوږدول**: - (اص) (۱) پښې غزول (۲) کار نۀ کول ، بېکـاره کښېناستل ، (۲) مړ کېدل ، ساه وتل ، پښې اګرې ته کول.

ـــ **بندې**: - (اص) تړلے پښې ، رو قدم.

ـــ **بندول**: - (اص) تګ راتګ نۀ کول ، تعلق نۀ ساتل.

ـــ **پر پښودل**: - (سو) اص. د کم عقلتوب کار کول.

ـــ **پسې وراخستل**: - (اص) (۱) د چا پښې اوچتول (۲) په چا زړۀ ور کېدل

ـــ **پسې ورلڅول**: - (اف) اص. د څۀ څيز پـه تـلاش کښـې ګرځېـدل ، څۀ څيز زيات لټول.

ـــ **پـولې پـولې کېـدل**: - (اص) پښـې تنـاکې تنـاکې کېـدل ، چاپسـې ډېـر ګرځېدل ، د چا په لټون کښې ډېر کړان تېرول.

ـــ **په سر تړل**: - (اص) ډېر وران کا رونه کول ، د نۀ کولو کارونه کول

ـــ **پـه لمـن کښـې نغښـتل**: - (اص) قـلار کښېناسـتل ، پـه ګـټ کښـې کښېناستل ، په چاغم غرض نۀ کول.

ـــ **په مزکه نۀ کښېښـول**: - (اص) (۱) پښـې پـه مزکـه نـۀ لګـول ، د ډېـرې مستـې او خوشحالـې اظهار کول (۲) د څۀ خبرې منلو ته نۀ تيارېدل ، د بل نۀ اورېدل.

ـــ **په مزکه نۀ لګول**: - (اص) و ـــ پښې په مزکه نۀ کښېښول.

ـــ **تر خپلې بړستنې غزول**: - (اف) مح. پښې له خپلې کمبلې څخه تېرول ، دخپل وس يا طاقت نه زيات کار ته لاس اچول.

ـــ **تناکې کول**: - (اص) (۱) په ډېر ګرځېدو پښې پولې کول (۲) د څۀ څيز په تلاش کښې ځان کړول.

ـــ **تناکېدل**: - (اص) و ـــ پښې پولې پولې کېدل.

ـــ **ټکول**: - (اص) (۱) پښـې پـه زمکـه وهـل ، پښـې پـه زمکـه پـه درز راخلاصول (۲) ګرندے کېدل ، بيړه کول ، تعدي کول.

ـــ **ټينګې لګول**: - (اص) (۱) پښـې مضبوطې کښېښـول ، پښـې کلکـول

(۲) احتیاط کول ، ډېر په پام فکر څهٔ کار کول۔

**ـــــ چپې کول**: - (اص) (۱) پښې کښلول ، د چا ډېر عزت کول (۲) چا د احسان لاندې کېدل۔

**ـــــ خرټول**: - (اص) په ضد اودرېدل ، خره پښه کېدل ، د څهٔ کار کولو نه انکار کول۔

**ـــــ خـرل**: - (۱) پښـې خونـدې کـول ، پښـې پـه زمکـه ټینګـول ، پښـې مضبوطول (۲) د څهٔ کار نه بېخي انکار کول ، څهٔ کـار کولـو تـه نهٔ تیاربدل ، (۳) په خپل ضد ټینګ اودرېدل۔

**ـــــ خوندي کول**: - (اف) اص۔و ـــــ پښې خرل۔

**ـــــ دربول**: - (اص) (۱) پښې ټکول ، پـه زوره زوره پـه زمکـه پښـې وهـل (۲) دب درکه کول۔

**ـــــ درنېدل**: - (اص) حمل کېدل ، په اُمېد کېدل۔

**ـــــ را اخستل**: - (اص) را روانېدل ،

**ـــــ سپکول**: - (اص) د ورزش پـه ډول پښـې ازادول ، ګرځېـدل راګرځېـدل (۲) یو ځاے نه منډه کول یا تښتېدل۔

**ـــــ سر کېدل**: - (اص) زیات کړېدل ، ځورېدل ، تکلیف خوړل۔

**ـــــ غزول**: - (اص) و ـــــ پښې اوږدول۔

**ـــــ کښل**: - (اص) (۱) د بل چا د پښـو ځاے کمزورے کول (۲) بې فائدې او بېګاري کار کول (۳) د سستئ او ناراستئ اظهار کول

**ـــــ کښېښودل**: - (اص) قدم کښېښودل ، پښې لګول۔

**ـــــ لنډې لنډې کېدل**: - (اص) (۱) زیات ستړے کېدل (۲) د یرې او ډار نـه یو ځاے ته د ورتلو طاقت نهٔ پاتې کېدل۔

**ـــــ له خپلې کمبلې څخه تېرول**: - (اف) مح۔و - پښې تر خپلې برستنې غزول۔

**ـــــ ماتول**: - (اص) (۱) په داسې کونډه نکاح کول چې د وارثانو سره ئې دا یره وي۔چې د چا پردې سړې سره به نکاح اوکړي۔(۲) غلط کار کول (۳) چاته سخته سزا ورکول ، څوک یـرول (۴) د ډوډۍ خـوراک تـه پـه مزکه پېنډې ته کښېناستل۔

**ـــــ ماتېدل**: - (اص) (۱) بېکـاره کېـدل ، (۲) سـتومانه کېـدل (۳) د پښـو اړوکي ماتېدل۔

**ـــــ مزکې ته نهٔ رسېدل**: - (اص) (۱) پښې مزکې ته نهٔ رسېدل ، د لنډ والي له کبله یا د ځاے د اوچتوالي په وجه د چا پښې مزکې ته نهٔ رسېدل (۲) ډېـر زیـات خوشـحالېدل ، د خوشـحالئ نـه پـه جـامو کښـې نـهٔ ځائیدل۔

**ـــــ مزکې ته ورتلل**: - (اص) و ـــــ پښې مزکې ته نهٔ رسېدل۔

**ـــــ مغـزي تـه اچـول**: - (اص) د خلقـو سـره تعلـق پـرې کـول ، چـا سـره تـګ راتګ نهٔ کول

**ـــــ نهٔ پـر ورتلل**: - (اف) اص۔(۱) پښـې حرکـت نـهٔ کـول (۲) د خفګـان او ناراضګئ په وجه یو ځاے ته نهٔ ورتلل۔

**ـــــ نیـول**: - (اب ، خ) اص ۔(۱) ږیـره پښـې نیـول ، معـافي غوښـتـل ، (۲) تګ راتګ بندول۔

**ـــــ نیول**: - (ګن) اص۔چاپې کول ، ټینګول۔

**پښتو ته زور ورکول**: - (اص) تښتېدل ، په منډه کېدل ، د یـو ځـاے نـه پـه منډه ځان ویستل ، پښې ایستل۔

**پښـو تـه کښېناستل**: -(اص) (۱) د کټ لنګـې تـه کښـېناسـتل (۲) عـاجزي کول ، منت زاري کول (۳) چاته سر ټيټول۔

**پر پښو درول**: - (اص) (۱) په پښـو ولاړول (۲) چاتـه د جنـګ جګـړې یـا بـې اتفاقئ ترغیب ورکول (۳) چا ته مالي مدد ورکول۔

**پر پښه خرختل**: - (اف) اص (۱) پښـې دپاسـه خـر اودرېـدل ، (۲) د دنیـا پـه نرمو ګرمو او سختو تجربه حاصلول۔

**پر یوه پښه ورته اودرېدل**: - (اف) اص۔(۱) په یوه پښه نېغ ولاړ او اودرېدل (۲) د زړهٔ د اخلاصـه د چـا خـدمت کـول ، زیاتـه تابعـداري کـول (۳) عـاجزي کول۔

**په اوږدو پښو خوب کول**: - (اص) (۱) بې غمه څملاستل (۲) ځان ناغرضه کول۔

**په پښو پرې ایستل**: - (اص) (۱) څوک چاته د معافئ غوښتلو دپاره رابوول او د هغهٔ پښو ته کښته کول (۲) څوک پړول لره ول ، کمزورے کول۔

**په پښو پرېوتل**: - (اص) (۱) د عزت پـه ډول د مشـر پښـو تـه ورټیټېـدل یـا کښته کېدل (۲) معافي غوښتل ، بخښنه غوښتل۔

**په پښو کښې رغښتل**: - (اص) و ـــــ په پښو کښې لوېدل۔

**په پښو کښې لوغړېدل**: - (اص) (۱) په پښو کښې رغښـتل (۲) خوشـامنده کول ، عـاجزي کول۔

**پـه پښـو کښـې لوېـدل**: - (اف) اص ۔(۱) پـه پښـو کښـې پرېوتـل ، پـه پښـو کښـې رغښـتل (۲) منت زاري کول (۳) خوشامنده کول۔

**په پښو کول**: - (اص) پېزار پښو ته اچول۔

**پـه پښـو لاس کښېښـول**: - (اص) (۱) د چـا تعظیـم کـول (۲) د چـا نـه معـافي غوښتل

**په چا پسې اخستل**: - (اص) چاته شرم ور اړول۔

**په خپلو پښـو اودرېدل**: - (اص) (۱) ځـان ټینګـول (۲) خپلـه د کـار روزګـار جوګه کېدل ، خپل کار په خپله روانول (۳) مالي حالت ښهٔ کېدل۔

**په یوه پښه پره کول**: - (اص) (۱) په لږ ساعت کښې زیات ګرځېدل (۲) یوې خبرې ته زیاته مشهوري ورکول (۳) د یو څیز زیات تلاش کول۔

**په یوه پښه ګرځېدل**: - (اص) (۱) پـه تُنـدئ کـار کـول ، زر زر شـورېدل یـا خوځېدل (۲) په یو کار کښې زیاته دلچسپي اخستل۔

**تر پښو لاندې کول**: - (اص) (۱) پښې په څهٔ څیز پاس کښېښـول (۲)څوک راپرزول او په پښو پاس پرې ختل (۳) څهٔ څیـز یـا خبـره هېـرول ، ځـان ناغرضه کول (۴) تباه کول ، بربادول۔

**تر پښو لاندې کېدل**: - (اص) (۱) په څهٔ څیز پښـې پـاس کښېښـولے کېـدل (۲) راپـرزولے کېـدل ، د چـا لانـدې کېـدل (۳) څـهٔ خبـره هېرېـدل (۴) بربادېدل ، تباه کېدل۔

**خره پښه کېدل**: - (اص) و ـــــ پښې خرټول۔

**د پښو څخه لوېدل**: - (اف) اص۔(۱) کمزورے کېدل ، پښـې د ګرځېـدو جوګه نهٔ پاتې کېدل ، د پښو له ترپه لوېدل (۲)بوډا کېدل ، زړېدل ، عُمر خوړل۔

**د پښو خاورې رانجهٔ کول**: - (اص) د چا ډېر عزت او احترام کول ۔د چا سره د عقیدت اظهار کول۔

**د پښو خاورې کښل**: - (اف) اص ۔(۱) د چا د پښـو د لاندې نـه خـاورې لـرې کول (۲) د چا غېبت کول (۳) چاته نقصان رسول۔

**د پښـو خـاورې کېـدل**: - (اص) تابعـدار کېـدل ، حکـم منلـو تـه غـاړه کښېښودل ، ځان خادم ګڼل۔

**د پښو له تر په لوېدل**: - (اف) اص ، و ـــــ د پښو څخه لوېدل۔

**د پښو نه مزکه تښتېدل**: - (اص) شرمېدل ، بې عزته کېدل ، د خلکو په مخ کښې زیات خړېدل۔

**د چا د پښو خاورې تلے کول او خولې ته اچول**: - (اص) (۱)څوک ډېر ګران او عزیز ګڼل (۲) د چا ډېر عقیدتمند کېدل۔

**لاس پښې وهل**: - (اص)کوښښ کـول ، همت کـول ، د روزئ ګټلو پـه لـړ

کښې منډې ترړې وهل.

**پُښهار** :- (پُ + شغ + ها + رْ یا پُ + خْ + ها + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، صو] د مار یا د باد د پښ پښ اواز ، پُښهارے.

**پښه ارته** :- (پښه + اَ + رْ + ته) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د پښې اوازونه ، د چنغول د چنغلې کره د تګ د اجازې دستوره.

**ـــــ کول**: - (اف) اص. د چنغول د چنغلې کورته د تګ د اجازې دستوره کول.

**پښه ارتې** :- (پښه + اَ + رْ + تې) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] ننواتے د پښو ارتې دستوره.

**پُښهارے** :- (پُ + شْ + هـا + رَے یـا پُ + خْ + هـا + رَے) [اف : پ (قاموس) اس ، صو] و ـــــ پُښهار.

**پښه سُورے** :- (پښه + سُو + رَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پښه سوري] هغه دستوره چې د وادهٔ دزلمي په دروازه کښې د ناوې د ننوتو نه اګاهو چرګ حلالولے شي.

**پښه يبل** :- (پښه + يَ + بَ + لْ) [پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا ، پښه يبله ، ج: پښه يبلې)] بربنډې پښې ، بې پیزاره ، پښې رمنډې.

**پښے** :- (پْ + شَ + يَے يـا پْ + خَ + يَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] رواش ، يو شين بوټے.

**پښې** :- (پَ + شې يـا پَ + خې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پښې)] (۱) پلترو ، د ټوپک د نالۍ صفا کولو رسۍ یا مزے ، (۲) د کوهي نه د بوکې رایستو رسۍ.

**پښبدل** :- (پُ + ښې + دَ + لْ یا پُ + خې + دَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] د مار یا د باد پښ پښ اواز کول.

**پُښبدلے** :- (پُ + شې + دْ + لَے یا پُ + خې+دْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پښبدلي] مار یا د باد روان شوے.

**پښبدنګ** :- (پُ + شې + دْ + نْ + ګْ یـا پُ + خې + دْ + نْ + ګْ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـــــ پُښبدنه.

**پښبدنه** :- (پُ + شې + دْ + نَه یـا پُ + خې + دْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] د مار یا باد پښ پښ کونه ، پښبدنګ.

**پښبدونکے** :- (پُ + شې + دُوْ + نْ+ کَے یا پُ + خې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پښبدونکي (مؤ: پُښبدونکې)] مار یا باد پښ پښ کوونکے.

**پښېمان** :- (پْ + شې + ما+ نْ یـا پْ + خې + مـا + نْ) [پ ، اس ، مذ ، وا (مؤ ، وا : پښېمانه ، ج : پښېماني)] (۱) پښېمانه ، پشېمان لېږخور ، په خپلو کړو ستومانه (۲) د خپل قول نه اوړېدلے.

**ـــــ پښېمان کېدل**: - (اص) پشېمان پشېمان کېدل ، لېږخور لېږخور کېدل ، شرمنده شرمنده کېدل.

**ـــــ کول**: - (اص) (۱) پشېمان کول ، لېږخور کول ، په خپلو کړو ستومانه کول ، (۲) د خپل کړي لوظ نه اړول.

**پښېمانتوب** :- (پښېمان + تـو + بْ) [پ ، اس ، مـذ] پښېماني ، پښېمانتيا ، لېږخورتوب ، لېږخورتيا ، ندامت ، شرمدګي.

**پښېمانتيا** :- (پښېمان + تْ + يا) [پ ، اس ، مؤ] و ـ پښېمانتوب

**پښېمانول** :- (پْ + شې + ما + نَ + وْ + لْ یـا پْ + خې + مـا + نَ + وْ + لْ) [پ ، مـص ، مـت] (۱) پشېمانول ، لېږخورول ، نـادم کـول ، شرمنده کول (۲) د کړي لوظ نه اړول.

**پښېمانونه** :- (پَ + شې + مـا + نَ + وْ + نَه یـا پْ + خې + مـا + نَ + وْ+نَه) [پ ، حمص] (۱) پشېمانونه ، لېږخورونه ، شرمنده کونه (۲) خپل کړي لوظ نه اړونه.

**پښېمانوونکے** :- (پْ + شې + مـا + نَ + وُو + نْ + کَے یـا پْ + خې + مـا + نَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: پښېمانوُونکي (مؤ : پښېماوونکې)] (۱) پشېمانوُونکے ، لېږخوروُونکے ، شرمنده کوُونکے ، (۲) د خپل کړي لوظ نه اړوُونکے.

**پښېمانه** :- (پْ + شې + مـا + نَـه یـا پْ + خې + مـا + نَـه) [پ، اس ، مذ ، مؤ] و ـــــ پښېمان

**ـــــ کول**: - (اص) و ـــــ پښېمان کول.

**پښېماني** :- (پْ + شې + ما + نِيْ یا پْ + خې + ما+ نِيْ) [پ ، اس، مؤ]

هر چې کا اُمید د بل حاصل ئې پښېماني وي
بې له خدایه هېڅوک د بنده اُمید وار مه شه مصري خان

و ـــــ پښېمانتوب.

**پښېمانېدل** :- (پْ + شې + ما + نې + دْ + لْ یا پْ + خې + ما + نې+ دْ+ لْ) [پ، مص لا] (۱) پشېمانېدل ، لېږخورېدل ، نـادم کېـدل، شرمنده کېدل (۲) د خپلې وعدې نه اوړېدل.

**پښېمانېدنګ**:- (پْ + شې + ما + نې + دْ + نْ + ګْ یا پْ + خې + ما + نې + دْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ پښېمانېدنه

**پښېمانېدنه** :-(پْ + شې + ما + نې + دْ + نَه یا پْ + خې + ما+ نې + دْ+ نَه) [پ، حمص] (۱) پښېمانېدهٔ ،پښېمانېدنګ ، پشېماندنه ، نـادم کېدنه ، (۲) د خپل کړي لوظ نه وړېدنه.

**پښېمانېدُونکے** :- (پْ + شې ـ ما + نې + دُوْ + نْ + کَے یا پْ + خې + ما+ نې + دُوْ + نْ + کَـے) [پ ، فـاع ، مـذ ، وا،ج : پښېمانېدونکي (مؤ : پښېمانېدُونکې)] پښېمانېدونکے ، نادم کېدونکے ، په خپلو کړو ستومانه کېدونکے (۲) د خپل کړي لوظ نه اوړېدونکے.

**پښېمانېدهٔ** :- (پْ + شې + مـا + نې + دهٔ یـا پْ + خې + مـا + نې + دهٔ) [پ ، حمص] و ـــــ پښېمانېدنه.

**پښې يبل** :- (پْ + شې + یا پْ + خې + يَ + بَ + لْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا: پښې يبله ، ج : پښې يبلې)] و ـ پښه يبل

**پطـرس** :- (پَ + طْ + رَ + سْ) [اس ، مـذ ، وا] د پېښـور اوسېدونکي پروفېسر احمدشاه بخاري ادبي نوم.

**پغنه** :- (پَ + غْ + نَه) [اف : پ (قاموس) اس] په يُوم او کُدالۍ یا چوټک د زمکې نرمولو کار.

**ـــــ کول**: - (اف) اص. په يوم ، کُدالۍ یا چوټک د زمکې نرمول.

**ـــــ کېدل**: - (اف) اص. په يُوم کُدالۍ یا چوټک د زمکې نرمېدل.

**پغه** :- (پَ + غَه) [پ ، حرف] په هغه ، هلته.

پغه ځاے باندې چې تۀ ئې ، تل اختر وي
تـل لـه مـخه دې ښادي هوس اختر شه مصري خان

**پف** :- (پَ + فْ) [انګ ، اس مذ] د ګنډون د مشين يو قسم.

**پف** :- (پُ + فْ) [پ ، کلمه] ورک شه ، د افسوس کلمه ، کله کله د ځۀ ځيز د زياتوالي په وخت هم وئيلے شي. خصوصاً د ګرمۍ د زياتوالي په وخت کښې.

تـو زما پـه دا بې پته اَسنايۍ کښې
پُف د برق بـرېښنا په روښنايۍ شه حميد

**پقيـر** :- (پَ + قِيْ + رْ) [پ ، ع : فقير ،اس ، مذ ، ج : پقيران ، مؤ ، وا: پقيره ،ج : پقيرې)] فقير ، سوالګرے ، خېر غوښتونکے ، غريب ، عاجز ، محتاج.

اســـتعاره لـــه مســـتعيره
لکه سپے چې نمرۍ غواړې لـه پقيره

**پک** :- (پَ + کْ) [پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا ، پکه ، ج : پکې] (۱) پمن ، پون ، (۲) گنجې.

مګر نـهٔ ګـوري و ځان ته
چې اصول پېغور د پک کا خوشحال

**ـــــ کېدل**: - (اص) (۱) ګـنجې کېدل ، سـر ګنجېـدل (۲) پمنېـدل ، (۳) خوارېدل ، نېستمن کېدل.

**پـــک** :- (پَ + کْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پکُونــه] (۱) سنګاوڼ ، د کشتۍ چپو (۲) پوګ (۳) وخت ، سمے ، موقع.

**پُک** :- (پُ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، (مؤ ، وا : پُکه ، ج: پُکې] (۱) د بېړۍ یا شپشتې یو طرف چې مخالف اړخ ته ئې چوک وائي . (۲) وار ، پېر

**پکار** :- (پَ + کا + رْ) [پ ، حرف ، مذ] (۱) په بنهٔ ، په شمر (۲) بایـد پکار دي . (۳) زړهٔ تـه تېر ، خـوښ (۴) غوښتنه ، خـواهش ، ارزو ، (۵) فائده من ، ضروري ، ښهٔ.

مـال و جـان لـه مـا جتمنـو دربـغ مـه کـړه
ناپکـاروي چـې د هیچـا پکـار نـهٔ شـي
د مېلمـه خـو دلجـوئي پکـار ده مصـره
تـش تيتـال دے پکـار نـهٔ دي د زبـان
کـه جهـان لـه ښائسـته مخونـو ډک شـي
څـوک مـې نـهٔ دي بـې لـه تـا پکـار هرګـز
کـه قـدم دې پـه تنـدي د يـار پکـار وي
لکـه خـاورې تـر نظـره ئـې خـوار اوسـه معزالله خان
نـور کارونـه پکـار نـهٔ دي کـه پـوهېږي مصري خان

**ـــــ راپکار**: - (اص) د پکارېدو جوګه ، هغه څیز چې په څهٔ شمر راتلونکے وي.

**ـــــ راتلل**: - (اص) په شمر کېدل ، په استعمال کښې راتلل ، پکارېدل

**ـــــ راوستل**: - (اص) استعمالول ، پکارول ، په شمر راوستل.

**ـــــ کېدل**: - (اص) پکارېدل ، پکار راتلل.

**در پکار** :- (اص) تاته پکار ، ستا د ضرورت.

**راپه کار** :- (اص) ماته پکار ، د ما د ضرورت.

**ناپکار** :- (اص) چې پکارنهٔ وي . بې ضرورته.

**ورپکار** :- (اص) چې هغه ته ئې ضرورت نهٔ وي.

**پکارول** :- (پَ + کا + رَ + وْ + لْ) [پ ، مص ، مت] پکار راوستل.

**پکارېـدل** :- (پَ + کـا + رې + دْ + لْ) [پ ،مـص لا] پکـار راتلـل ، پکـار کېدل.

**پکـټ** :- (پَ + کَ + ټ) [انـګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پکټونـه ، پکټینـه پکټیان] سنګر ، د مورچې اختسو ځاے ، محفوظه مورچه.

**ـــــ لګول**: - (اص) په یو ځاے کښې په مورچه کښې کښېناستل ، په څو کښېناستل.

**پکچـــر** :- (پِ + کْ + چَ + رْ) [انـګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پکچرُونــه ، پکچرینه] (۱) تصویر (۲) سنیما ، بائیسکوپ

**پکر** :- (پَ + کَ + رْ) [پ (عا) ع : فقر ،اس ، مذ] فقر ، غریبي ، مفلسي ، ګدائي.

**پکر** :- (پْ + کَ + رْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] دا ټکے د جنګ جګړې یا تنازعې په وخت وئیلے شي . مقابله . متل: څـو پکـره مـې ورسـره اووهل.

**پکـر** :- (پِ + کَ + رْ) [پ (عـا) ع : فکـر ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پکرونـه ، پکرینـه] (۱) فکـر ، خیـال ، توجـه ، پـام ، (۲) احتیـاط ، سـوچ ، (۳) اندېښنه.

**ـــــ کول**: - (اص) (۱) پام کول ، خیال کول (۲) احتیاط کول ، ځان ژغورل ، سوچ کول (۳) اندېښنه کول.

**ـــــ کېدل**: - (اص) (۱) وریـام کېدل ، خیـال کېدل (۲) احتیـاط کېدل ، سوچ کېدل (۳) اندېښنه کېدل.

**پکرول** :- (پْ + کَ + رْ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] (۱) ګرول ، نوکارې پرې لګول ، ګروشېیل (۲) پارَول ، قهرول ، راغزول.

**پکرولے** :- (پْ + کَ + رْ + وْ + لَے) [اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج : پکرولـي ، (مـؤ : پکرولـې] (۱) ګـرولے ، ګروشـېیلے (۲) پـارولے ، قهرولے ، راغزولے.

**پکرونـه** :- (پْ + کَ + رْ + وْ + نَـه) [اف : پ (قـاموس) حمـص] (۱) ګرونـه ، ګروشېینه (۲) پارونه ،قهرونه ، راغزونه.

**پکروُونکے** :- (پْ + کَ + رَ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قـاموس) اس، فـا ، مـذ ، وا ، ج : پکروُونکـي (مـؤ ، پکروُونکـې] (۱) ګـروُونکے ګروشېیُونکے ، (۲) پارَوُونکے ، قهروُونکے.

**پکرېـــدل** :- (پْ + کَ + رې + دْ + لْ) [اف : پ (قـــاموس) مـــص ، لا] (۱) ګرېدل ، ګروشېدل (۲) پارېدل ، قهرېدل.

**پکرېدلے** :- (پْ + کَ + رې + دْ + لَے) [اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج : پکرېـدلي (مـؤ : پکرېـدلې] (۱) ګرېـدلے ، ګروسـېدلے (۲) پارېـدلے، قهرېدلے.

**پکرېدنـــه** :- (پْ + کَ + رې + دْ + نَـــه) [اف : پ (قـــاموس) حمـــص] (۱) ګرېدنه ، ګروشېدنه ، پکرېدهٔ (۲) پارېدنه ، قهرېدنه.

**پکرېدونکے** :- (پْ + کَ + رې+دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پکرېـدُونکي (مـؤ : پکرېـدونکې)] (۱) ګرېـدونکے ، ګروشېدونکے (۲) پارېدونکے ، قهرېدونکے

**پکرېدهٔ**:- (پْ + کَ + رې +دهٔ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ پکرېدنه .

**پکړ** :- (پْ + کَ + ړْ) [پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پکړه ، ج : پکړې] خوار ، مسکین ، چې پـه جېب کښې سره پېسـه نهٔ لري . نېستۍ اختسے ، د پولۍ پرق ته ناست.

**ـــــ کول**: - (اص) خوارول ، د پولۍ پرق ته کښېنول ، دیوالیه کول.

**ـــــ کېدل**: - (اص) خوارېدل ، . د پولۍ پرق ته کښېناستل ، دیوالیه کېدل

**پکـړ** :- (پّ + کْ + ړْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: پکـړان] د لمنځې لرګے.

**پکست** :- (پْ + کَ +سْ + تْ) [پ ، کلمه] په قست ، په نیت ، په اراده ، خامخا ، په ضد .

**ـــــ کول**: - (اص) خامخا کول ، په اراده کول ، په ضد کول.

**پکښې** :- (پَ + کْ + شې یـا پَ + کې) [پ ، ص] (۱) ورکښې ، دننـه پـه مېنځ کښې (۲) کوني ، ګانډُو.

چې مذکور پکښې د سرو لبو د یار دے
ځکـــه شـــو د معـــزالله وئیـــل لذیـــذ

**ـــــ اچول**: - (اص) څهٔ څیز په مېنځ کښې اچول.

**پکل** :- (پْ + کْ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مص مت] پینـل ، د دارو یـا بـل پوست مبده کړي څیز ته وهل.

پـه یـو وار نـهٔ کېږي دوه کاره کول
یا شپېلۍ شي یا به شي ستوان پکل احمد دین طالب

**پکل** :- (پ + کَ + لْ) [اف : پ (قاموس اس، مذ] انډېرے، پوزے ، چغ.

**پکلی** :- (پَ + کْ + لَ + یَی) [پ، اس ، معـرا] پـه هـزاره ضـلع کښـې د پښتنو يوه علاقه.

د خوشحال خټک يو ښکلے مخ پکار دے
کـه د سـوات کـه د پکلـی کـه د بُنيـر وي

**پکلے** :- (پْ + کْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پکلي (مؤ : پکلې) ] پيښلے ،تلے ، وهلے شوے.

**پکنک** :- (پ + کْ + ن + ک) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پکنکونه] سويت ، د سبل سپاتې دپاره د يارانو دوستانو بهتر تـه تلل او هلتـه اخلے پخلے کول.

**پکنه** :- (پ + ک + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] پيننه ، تلے وهنه

**پکو** :- (پْ + کوً) [پ ، ص] سرګردان ، سرکودن ، په بد حال ، په غم

خود له درده شين د څان پکو ناست يم واعظه
شيـخ د محتسب دې ژبې ســمے غـر دي علي خان

**ـــــ کول**: - (اص) سرګردانول ، په غم لړل ، پرېشانول.

**ـــــ کېدل**: - (اص) سرګردانېدل ، په غم اخته کېدل ، پرېشانېدل.

**پکـوړ** :-(پْ+کـو+ړْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پکوړونـه] پکول ، د وړې لويه ټوپۍ چې غوړونه پکښې پټ وي.

**پکوړه** :- (پَ + کـو + رَه) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پکـوړې] وړه ، د چڼو د اوړو يعني بېسن ، پياز ، مرچ ، آلو ، ټماټر وغېره نه په تېلو يا غوړو کښې تلولے غوندې شان څيز چې خوند ئې ترسکون وي.

**پکول** :- (پَ + کو + لْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پکولونه] و ــ پکوړ

**پکوني** :- (پْ + کُو + نْ + ړَ + يَی) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ] هغه طلاقه شوې ښځه چې بل چا په نکاح کړې وي.

**پکونکے** :- (پْ + کُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پکـونکي (مـؤ : پکـُونکې) ] پيښـُونکے ، تلے اچـوُونکے يـا تلـے وهونکے.

**پکو والے** :- (پْ + کو + وا + لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] سرګرداني ، پرېشاني ، بدحالي ، اوترتوب.

**پکه** :- (پْ + کَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پکې] ګپه ، پُوښې ، تلے ، هغه دارو يا مېده کړے څيز چې يو څل خولې ته اچولے شي.

**ـــــ وهل**:- (اص) تلے وهل ، څۀ څيز پيښل ، په يو وار خولې ته څۀ اچول

**پکه** :- (پْ + کَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا] پک ، پوګ.

**پکه** :- (پَ+کَه) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا، ج : پکې] ګنجی، پمنه ، پَونه.

**پکه بانبه** :- (پکـه ، بـا + شـه يـا خـه) [اف: پ (قـاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: پکې پانبې] کُوکه باشه ، يو قسم بانبه.

**پکـه پـاپکې** :- (پکـه + پـا + پْ + کـی) [اف : پ (قـاموس) اس، مـو] يـو مشهور شينکے چې بېخ ئې د کچالو په شان او خوږ وي.

**پکه تيږه** :- (پکه + تيْ + ژَه يا ګَه) [اف : پ (قـاموس) اس، مؤ ، ج: پکې تيږې] پله تيږه.

**پکې** :- (پْ + کَ + يَی) [اف : پ (قـاموس) اس، مؤ] اډۍ ، د يـو جريـب برابر د کر جوګه زمکه چې په مېنځ کښې ئې پُولې بريدونه نۀ وي.

**پکے** :- (پْ + کَے) [پ ، ه ، پنکهـا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پکي] بېـوزے ، بوزے ، بېزے ، بادپکے.

**ـــــ بندول**: - (اص) په بجلۍ چلېدونکے باد پکے اودرول.

**ـــــ چالو کول**: - (اص) پکے خلاصول.

**ـــــ چلول**:-(اص) په بجلۍ چلېدونکے باد پکے خلاصول ، پکے چالو کول.

**ـــــ لګول**: - (۱) د بجلۍ پکے خلاصول يا چالو کول (۲) پـه چت کښې د بجلۍ پکے ځوړندول.

**ـــــ وهل**: - (اص) چاته د لاس په پکي باد رسول.

**پکے** :- (پَ + کَے) [پ ، ص] و ـــــ پکښې

**پکے** :- (پُ + کَے) [اف : پ (قاموس)اس ، مذ ، وا ، ج : پُکِيْ (مؤ : پُکـۍ) ] د پک يا پوګ اسم تصغير.

**پکېدل** :- (پَ+کې+دْ+لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] پک کېدل پوګ کېدل.

**پکېدنه** :- (پَ+کې+دْ+نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] پک کېدنه پوګ کېدنه.

**پکېدونکے** :- (پَ + کې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ وا ، ج : پکېدونکي (مؤ : پکېدونکې) ] پک کېدونکے ، پوګ کېدونکے.

**پکير** :- (پَ + کيِْ + رْ) [پ (عا) ع : فقير ، اس ، مذ ، وا ، ج : پکيـران (مؤ ، وا ، پکيره ، ج : پکيرې) ] فقير ، ملنګ ، سوالګرے.

**ـــــ کول**: - (اص) غريبول ، ملنګول ، خوارول.

**ـــــ کېدل**: - (اص) غريبېدل ، ملنګ کېدل ، خوارېدل.

**پـګ** :- (پَ + ګْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پګُونـه] غټـه پګـړۍ ، غـټ دستار ، لوے پټکے.

**پګـاړه** :- (پَ + ګـا + ړَه) [پ (تـوري) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پګـاړې] اشـر بلندره ، بسکر ، پګړه.

**پګړه** :- (پْ + ګَ + ړَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ــ پګاړه.

**پګړۍ** :- (پَ + ګْ +ړَ + يَی) [پ ، ه : پګړي ، اس ،مؤ] (۱) دستار پګ ، پټکے، پګه (۲) غېرت

معـــزالله پګــړۍ بـــه بيـــا ببرتـــه رانـــۀ وړي
خـالي لاس چې شـوې پـه هسـې ډک بـازار ګـډ

**ـــــ پربوتل** :- (اص) (۱) پګړۍ د سر نه غورځېدل ، (۲) شرمېدل ، بې عزته کېدل ، د چا حيا اخستلے کېدل.

**ـــــ په پښو کښې اچول**: - چا ته سر ټيټې کول ،د چا ه بخښـنه يا معـافي غوښتل.

**ـــــ په سر کول**: - (اص) (۱) پګړۍ تړل ، دستار يا پټکے په سر کښېښـول (۲) مشري موندل ، د چا په سر د مشرۍ دستار تړلے کېدل.

**ـــــ تړل**: - (اص) و ـــــ پګړۍ په سر کول.

**ـــــ ورکـول**: - (اص) (۱) چا تـه د عـزت پـه ډول دسـتار يـا پـټکے ورکـول (۲)بډې رشوت ورکول .(۳) د دوکان يا مکان د کرايه دار د بل چا نـه زياتي پيسې اخستل او مکان ورحواله کول.

**د خيال پګړۍ** :- (اص) د کبر او لويۍ دستار.

**پګڼ** :- (پْ + ګَ + ڼْ) [پ ، ه] پهاګن ، اس ، مذ] د هندي کـال يوؤلسـمه مياشت

متل: پنګړې ئې ورک کړې چېتر په بدنام شي.

**پګڼه** :- (پْ + ګَ + ڼه) [پ ، ص] پـه شريکه ، پـه جمع ، پـه يـو ځـاے پـه اتفاق.

**پګه** :- (پْ + ګه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـــ پګړۍ

**پل** :- (پْ + لْ) [پ ، اس] (۱) معاف ، بخښلے (۲) خصي ځاروے

خون مې پل سر صدقه شه
لـه دغــه تــېزه خنـجـره مصري خان

**ـــــ کول**: - (اص) (۱) معاف کول ، بخښل ، (۲) خصي کول.

**حق پل کول** :- (اف) اص ـ حق بخښل ، حق معاف کول.

**پل** :- (پَ + لْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پلُونه] (۱) قدم (۲) د پښې نخښـه ، منډه (۳) د ژرندې يا مېچنې غونډ کاڼے چې ګنډه پـور پُـوړ ورتـه

وائي. (۴) د کُلال څرخ.

د صراط په پُل به تیر لکه بریښنا شم
کــه پــه پلهٔ مې برابر د اشنا پل شي سکندر خان

چې ئې څوک په کوڅه پل ږدي هغه سر خوري
پــه جــوار بــانــدې ئې مه گوزه سر خوره خوشحال

**ـــــ اخستل**: - (اص) قدم اخستل ، د ماشوم په پښو روانېدل.
**ـــــ پټول**: - (اص) (۱) پل پټې کول ، منډ پټول (۲) عېب پټول.
**ـــــ پټې کول**: - (اص) و ـــــ پل پټول.
**ـــــ پر پـل کښېښـودل**: - (اص) (۱) منډه پـه منډه کښېښـول ، د بـل د پښې په نخښـه خپـل پـل کښېښـول (۲) پـه بـل پسې تلـل ، د بـل چـا پېروي کول.
**ـــــ پسې اخستل**: - (اص) د چا په منډه یـا پـل پسې تلـل ، د چـا پـه تـلاش کښې په هغه لار ورپسې تلل په کومه چې هغه لاړ وي.
**ـــــ په تُوره وهل**: - (اص) (۱) منډ پـه تُوره وهـل (۲) د چـا سـره سـخته دښمني او کینه ساتل.
**ـــــ کښېښودل**: - (۱) روانېدل (۲) شروع کول
**ـــــ وروړل**: -(اص) د چا کور ته د غل منډ یا پل ور رسول. پل وروستل.
**ـــــ وروستل**: - (اص) پل ور وړل.
**ـــــ وهل**: - (اص) د غل په منډ پسې تلل ، د غلهٔ په تـلاش کښې د هغـه د پښې په نخښه پسې تلل.

**پِل**: - (پِ+ لْ) [اف : پ (قاموس) ه : پَل ، اس ، مذ] یو ساعت ، د سترگو رپ
**پُـل**: - (پُـ+ لْ) [فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پلُونـه] دریـاب یـا د خـوړ دپاسـه جوړ کړے سړک یا لار.
**ـــــ تړل**: - (اص) پُل جوړول ، دریاب یا د خوړ دپاسه د تېرېدو لار جوړول
**ـــــ جوړول**: - (اص) و ـــــ پُل تړل.
**ـــــ صراط**: - (اص) د مسلمانانو د عقیدې مطابق هغـه نـرۍ او تېـره لار چې د قیامت پـه ورځ بـه د خدا ے پـاک نېـک بندگان پـرې جنت تـه تېرېږي.

**پلا**: - (پْ+ لا) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پلاوې] (۱) وار ، ځل ، وخت ، موده (۲) دوره ، تگ ، گشت ، سفر.
**ـــــ کول**: - (اف) اص. د سوداگرۍ په غرض د یو ملک نه بل ملک ته تلل
**په پلا پسې تلل**: - (اف) اص. په سوداگرۍ یا تجارت پسې تلل.
**پـلاټ**: - (پْ+ لا+ ټْ) [انگ : اس ، مـذ ، وا ، ج : پلاټونـه ، پلاټیـنـه] (۱) د مزکې ټوټه ، (۲) د قصې خاکه ، (۳) سازش.
**پلاټون**: - (پْ+ لا+ ټُو+ نْ) [انگ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پلاټُونونـه] پلټـون ، د څلوېښتو پنځوسو کسانو فوځي دسته.
**پلاټینم**: - (پْ+ لا+ ټِيْ+ نَ+مْ) [انگ ، اس ، مذ] یو قیمتي دات.
**پلار**: - (پْ+ لا+ رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پلاران ، پلرونه] ابـا ، بابـا ، داجي ، هغه څوک د چا د نطفې نه چې اولاد پېدا وي.

چې د پلار سره دروغ نفاق خلاف کا
د نور چا سره به څرنگ زړهٔ صاف کا خوشحال

**ـــــ په پلار**: - (اص) پلار په نیکهٔ ، پېړۍ په پېړۍ ، خېل په خېل
**ـــــ په نیکهٔ**: - (اص) و ـــــ پلار په پلار.
**د پلار په ځاے کښېناستل**: - (اص) د پلار ځاے نیول.
**د پلار ځاے نیول**: - (اص) د پلار پـه ځـاے کښېناسـتل ، د زوے د خپـل پلار هومره کمال ته رسېدل.

**د پلار ځاے وهل**: - (اص) د پلار ځاے ته رسېدل ، د پـلار پـه شـان خوئـي بوئي لرل.
**پهه پلاران**: - (اص) نهه فلکه یا اسمانونه.
**پلارتوب**: - (پلار + تو+ بْ) [پ ، اس ، مذ] پلاروالے ، پلار جوړېدل پـلار گلوي ، پلارولي.
**پلار خېل**: - (پلار + خې + لْ) [پ (روسي قاموس) اس،مذ] پلارگنۍ
**پلارگلوي**: - (پلار + گَ + لْ+ وِيْ) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] و ـــــ پلار توب
**پلارگني**: - (پلار + گَ+ نَ+ یِيْ) [پ ، اس ، ص ، مؤ] د ناوې د پلار کـور ، د پلار خېل ، د پلار خېلخانه ، پلرگنۍ.
**پلار مړے**: - (پلار + مْ+ ړَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: پلارمړي (مؤ : پلارمړې) ]چې پلار ئې مړ وي. یتیم.
**پلار نیکه**: - (پلار + نِيْ+ کهٔ) [پ ، اس ، مر ، مذ ، ج] خېـل خېلخانـه ، پرگه ، پېړۍ ، مشران.

نوم د پلار نیکهٔ په بد د چارو یاد کا
نـا خلف له ښو کسانو پیدا مه زشه معزالله خان

**پلار والے**: - (پلار + وا + لَے) [پ ، اس ، مذ] و ـــــ پلارتوب

ځنې امان غواړه که دې پسر وي
پـلار والے پـرې کړه د بې ازرمه خوشحال

**پلار ولي**: - (پلار + وَ+ لِيْ) [پ ، اس ، مؤ] و ـــــ پلارتوب.
**پلاز**: - (پْ+ لا+ زْ) [ا : پ (قاموس. ق) اس ، مذ] تخت

سمندر شربت ؤ کړے مصلحت
یـارانـو پـه پلارولۍ شه رحمت (د مروتو کسرونه)

**پلازمینه**: - (پلاز + مې + نه) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] د تخت ځـا ے ، صدر مقام ، پایهٔ تخت.
**پلاس**:-(پْ+ لا+ سْ) [فا ، اس ، مذ ] ټاټ ، بوجۍ ، غټ شډل ټوکے

هغه زړهٔ به ائینې غوندې صفا وي
چې اغوستے ئې نمدوي یـا پلاس معزالله خان

**پلاس**: - (پْ+ لا+ سْ) [اس ، مذ ، وا ، ج : پلاسونه] امبور.
**پلاس پلي**: - (پْ+ لاس + سْ+ پْ+ لِيْ) [اف : پ (قـاموس) اس، مـذ] یـو بُـوټے چې غُنـډ شـان تخـم لـري او د خېټې د چینجـو د عـلاج دپـاره استعمالولے شي.
**پلاسټک**: - (پْ+ لا+ سْ+ ټَ+ کْ) [انگ ، اس ، مذ ] پـه کیمیـائي عمـل جوړ شوے څیز چې د کپړې او ښنت دواړو پـه شکل کښـې مونـد ے شي. دا په اوبو کښې حل کېږي نه.
**پلاسـفر**: - (پَ+ لا+ سْ+ فَ+ رْ) [پ (عـا) اس ، مـذ ، وا ، ج : پلاسـفران (مؤ ، وا: پلاسفره ، ج : پلاسفرې) ] (۱) فلاسفر، فلسفي ، د فلسـفې د علم ماهر (۲) په سوچونو کښې ډوب.
**پلال**: - (پْ+ لا+ لْ) [پ ،اس ، مذ] (۱) طلب (۲) حفاظت.
**پلاله**:-(پْ+ لا+ له) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] درُوزه ، پروړه ، وربنه.
**پلالین**: - (پَ+ لا+ لې + نْ) [پ (عـا) انگ ، فلینـل ، اس ، مـذ] یـو قسـم نرمه ، گرمه بور داره کپړه ، پولالین ، پولے لین.
**پـلان**: - (پْ+ لا+ نْ) [انـگ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پلانونـه] (۱) خاکـه منصوبه (۲) تجویز.
**پلانـــده**: - (پْ+ لا+ نْ+ دَه) [اف : پ (قــاموس) اس ، مــؤ] کُشــتي ، پهلواني ، پرزونې.
**ـــــ کول**: - (اص) کُشتي کول ، پهلواني کول ، پرزونې کول.

**پلاڼ** :- (پَ + لا + ڼ) [ پ (گن) اس ، مذ ، وا ، ج : پلاڼونه ] و ــ پالان.

**پلاڼه** :- (پْ + لا + ڼه) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج : پلاڼې ] لوےمشک ، چې د لرګ نه اوبهٔ پکښې راوړلے شي-رابیا.

**پلاڼه** :- (پَ + لا + ڼه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا، ج : پلاڼې] (۱) د وښو دلۍ ، بوساره ، (۲) پالان.

**پلانکے** :- (پْ + لا + نْ + کے) [ پ ، ص ، مذ ، وا، ج : پلانکي (مؤ: پلانکۍ) ] پلانے ، فلانے ، فلانکے ، هغه.

**پلاننګ** :- (پْ + لا + ن + نْ + ګْ) [ انګ ، اس ، مذ ] منصوبه بندي ، د کار کولو تجربه.

**پلانے** :- (پْ + لا + نَے) [ پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : پلاني (مؤ : پلانۍ) ] و- پلانکے

**پُلاؤ** :- (پُ + لاؤ) [ فا ، اس ، مذ ، وا، ج : پلاوُونه ] په غوړه کښې پخې وریژې.

پُلاؤ او خوري يوه لپه
نه پرېوځي اندرغپه خوشحال

**پلپل پاڼې** :- (پْ + لْ + پْ + لْ + پا + ڼې) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ] د سفيدې د ونې يو قسم.

**پلپوټ** :- (پَ + لْ + پو + ټْ) [ اف : پ (قاموس) ص ] (۱) اغوستنه (۲) ځهٔ خبره ګډه وډه کول.

**پلپوټ** :- (پَ + لْ + پو + ټْ) [ پ (گن) اس ، مذ] لټون ، پلپېټ ، غوښتنه

ــــ **کول**: - (گن) اص-لټون ، غوښتنه کول.

**پلپولک** :- (پَ + لْ + پُو + لَ + کْ) [پ (سو) اس، مذ] يو بوټے چې په اوبو کښې کېږي - د شوکولې پاڼې نه ئې پئی اوزي - هغه که په لاس ولګي نو پولۍ کوي ئې.

**پلپېټ** :- (پَ + لْ + پې + ټْ) [ پ (ب،خ) اس، مذ] و ــ پلپوټ.

**پلپېټ جن** :- (پَ + لْ + پې + ټ + جَ + نْ) [ پ (ب،خ) اس ص ، مذ ، وا ، ج (مؤ ، وا ، پلپېټ جنه ، ج : پلپېټ جنې) ] پلټمن ، ناقلاره ، بې ارامه، اشوراند.

**پلترو** :- (پَ + لْ + تْ + رُوْ) [ پ (ع) انګ : پُل تهرو ، اس ، مذ ، وا ، ج: پلتروګان ] هغه مزے يا رسۍ چې يو سر ته ئې پيتل يا سکه لګېدلې وي - په بل سر کښې چې کپړه واچولے شي نو ټوپک پرې صفا کولے شي-پترو.

**پلتري** :- (پْ + لَ + تْ + رِيْ) [ اف ، پ (قاموس) اس، مؤ] د زنانوؤ د غوږ کالے ، لښته ، والۍ.

**پلتري** :- (پْ + لَ + تْ + رَ + يِيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] پلتۍ ، پرلت.

ــــ **کښناستل**: - (اف) اص-پلتۍ وهل ، پرلت وهل ، پلتري وهل

ــــ **وهل**: - (اف) اص-و ــــ پلتري کښناستل.

**پلته** :- (پَ + لْ + تَه) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج : پلتې] (۱) پليته ، د ډيوې وټ چې د مالوچو نه جوړ وي-(۲) د ګوګړ يوه تيلۍ.

**پلته** :- (پْ + لْ + تَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پلتې ] په کاغذ يا پلاسټک کښې بند په يو قطار د دوايۍ ګولۍ.

**پلتۍ** :- (پَ + لْ + تَ + ی) [ پ ، اس ، مؤ] و ــ پلتري.

ــــ **وهل**: - (اص) و ــــ پلتري وهل.

**پلټيک** :- (پَ + لْ + ټيْ + کْ) [ اف : پ ، انګ ، پاليټکس ، اس ، مذ] سياست.

**پلټل** :- (پْ + لْ + ټْ + لْ) [ پ ، مص ، مت] لټول ، اړول را اړول ، تلاش کول ، څېړنه کول ، تحقيق کول.

**پلټلے** :- (پْ + لْ + ټْ + لَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پلټلي (مؤ : پلټلې) ] لټولے ، اړولے را اړولے.

**پلټمن** :- (پْ + لَ + ټْ + مَ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ (مؤ، وا: پلټمنه ، ج : پلټمنې) ] پلټن ، ناقلاره ، د بيمارۍ په وجه بې ارامه.

**پلټن** :- (پَ + لْ + ټَ + نْ) [ اس ، مؤ ، وا ، ج : پلټنې ] پلټڼ ، د فوځ يوه حصه چې نفري ئې د اوو سوؤ او يو زر په مېنځ کښې وي - کماندار ئې کرنېل وي-پټڼه.

**پلټند** :- (پْ + لَ + ټَ + نْ + دْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، (مو ، وا: پلټنده ، ج : پلټندې) ] و ــــ پلټمن.

**پلټندي** :- (پَ + لَ + ټَ + نْ + دي) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص مذ] ناقراره ، بې قرار ، په بيړه ، پلټند.

**پلټندي** :- (پْ + لَ + ټَ + نْ + دِيْ) [ اف : پ (قاموس) اص ، مؤ] بې قراري ، بيړه، تادي.

**پلټڼ** :- (پَ + لْ + ټَ + ڼْ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پلټڼې ] و ــ پلټن

پلټڼې راغلې په قصور باندې عبدالواحد تهبکدار

**پلټنګ** :- (پْ + لْ + ټْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ــــ پلټنه

**پلټنه** :- (پْ + لْ + ټْ + نَه) [ پ ، حمص ] پلټنګ ، څېړنه ، غوښتنه اړونه را اړونه ، تحقيق کونه ، پلټون ، تفتيش ، تلاشي

ــــ **کول**: - (اص) څېړنه کول ، اړول را اړول ، تحقيق کول ، پلټون کول تفتيش کول ، تلاشي کول.

**پلټني** :- (پْ + لْ + تْ + نِيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پلټنيان ] سپاهي ، عسکر.

**پلټون** :- (پْ + لْ + ټُو + نْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ] و ــ پلټنه

ــــ **کول**: - (اف) اص- و ــــ پلټنه کول.

**پلټون** :- (پْ + لْ + ټُو + نْ) [ پ ، انګ : پلاټون ، اس ، مذ ، وا ، ج : پلټونونه ] و ــــ پلاټون.

**پلټونکے** :- (پْ + لْ + ټُو + نْ + کَے) [ پ ، اس ، قا ع ، ، مذ ، وا ، ج: پلټُونکي (مو : پلټُونکې) ] لټوونکے ، تفتيش کوونکے ، تلاشي کوونکے ، جاج اخستونکے.

**پُلچک** :- (پُ + لْ + چَ + کْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پرونه

**پلخ** :- (پْ + لَ + ښ) [ اف : پ (قاموس) ص ] ډېر وېښتهٔ.

**پلخے** :- (پْ + لْ + ښے) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ] د بزې يا داسې بل څيز اوږدهٔ وېښتهٔ.

**پلخبور** :- (پْ + لْ + ښے + و + ر) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ] وېښتهٔ ور وژ ، داسې وژ يا بل څيز چې وېښتهٔ ئې ډېر زيات وي.

**پلرګنۍ** :- (پْ + لَ + رْ + ګَ + نَ + يَی) [ پ ، اس ، مؤ] و ــ پلارګنۍ

**پلستر** :- (پَ + لَ + سْ + تَ + رْ) [ پ ، انګ : پلاسټر ، اس ، مذ] (۱) د سيمټو يا چُونې لېو (۲) هغه پټۍ چې ډاکټران ئې په مات ځاے ترې او د ځهٔ خاص مودې نه پس ئې خلاصوي.

ــــ **خلاصول**: - (اص) په مات ځاے د پلسترو تړلې پټۍ پرېکول.

ــــ **کول**: - (اص) (۱) د سيمټو يا چونې لېوکول (۲) په مات ځاے پلستر تړل.

**پلستري** :- (پْ + لَ + سْ + تَ + رِيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] جورابې.

**پلشته** :- (پْ + لَ + شْ + ته) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج : پلشتې ] ګشتۍ ، بد چلنده ښځه.

**پلغابه** :- (پَ + لْ + غا + شه يا خَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هغه غوټه يا ګنډه چې زر خلاصېږي.

**پلغټ** :- (پَ + لْ + غَ + ټْ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ] تېز قدم ، تېز

رفتار ، چاخ تګ.

**په پلغښ تلل** :- (اف) اص.تېز تلل ، چاخ تلل ، زر زر قدم اخستل.

**په پلغښ راتلل** :- (اف) اص.زر راتلل ، تېز راتلل.

**پلغلت** :- (پْ + لْ + غْ + لَ + تْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، مؤ ، وا: پلغلته ، ج : پلغلتې) ] (۱) هغه څوک چې قدم غلط ږدي - بې لارې ، (۲) منافق ، ټګ.

**پلغلتي کول** :- (اف)اص ، ټګي کول ، دوکه کول.

**پلک** :- (پْ + لَ + کْ) [پ، لاحقه] دکلک سره استعمالېږي .لکه کلک پلک.

**پلک** :- (پَ + لْ + کْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پلکونه ، پلکان] د اوسپنې هغه غټ څټک چې لوهاران ئې داوسپنې د سمولو دپاره په سندان راخلاصوي.

ټپه: په اشنايۍ کښې زړهٔ سندان کړه
پکښې پيښېږي د پلکانو ګذارونه!

**د پلکو کول** :- (اص) ښهٔ وهل ، په وهلو ټکولو پستول.

**په پلکو کېدل** :- (اص) ښهٔ وهلے کېدل ، په وهلو ټکولو د بوسو سخے جوړېدل.

**پلکه** :- (پْ + لْ + که) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا: ج : پلکې] (۱) د مېخ سر (۲) د مويځ يا کشمش پېزوان.

**پلکه** :- (پْ + لْ + کَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پلکې] د ټُورې موټے.

**پلکے** :- (پْ + لْ + کْ + يَے) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] هغه اوسپنه چې سپاره پرې ټينګولے شي.

**پلګوانښه** :- (پَ + لْ + ګْ + وا + شـه يـا خـه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پلګوانښې] د خلکې د غوټۍ حلقه چې د مزي نه جوړه وي .پلوانښه ، غوراشه.

ټپه: خدا ے دې د سيند د غاړې ګل کړه
چې د اوبو په پلمه درشم بوئې دې کړمه!

**پلمن** :- (پَ + لْ + مَ + نْ) [پ (ګن) ه : پيلو ، اس ، مذ] يو ونه چې د څانګو او جړو نه ئې مسواک جوړېږي .پلين ، پلښه ، پلوان ، پلښمن پلښمه.

**پلمه** :- (پَ + لْ + مَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پلمې] بانه ، عذر ، مکر ، دوکه ، فرېب ، ټګي.

**ـــــ جوړول** : - (اص) بانه جوړول ، پلمه کول ، د دروغو خبره جوړول.

**ـــــ کول** : - (اص) بانه کول ، مکر کول ، ټګي کول.

**پلن** :- (پْ + لْ + نْ) [پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا، پلنه ، ج : پلنې) ] (۱) سورور ، چې سور ئې لوے وي .ارت ببرت (۲) څورب ، غټ پټ هغه څوک چې په پلنو غټ وي.

**پلن** :- (پَ + لْ + نْ) [پ (ق) اس ، مذ ] پياده ، نن پرون دا ټکے نهٔ استعمالېږي.

**پلن پاڼے** :- (پْ + لْ + نْ + پا + نْ + ڼے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پلن پاڼي] يو قسم چينجے.

**پلن پاڼې** :- (پْ + لْ + نْ + پا + نْ + ڼې) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: پلن پاڼې] چې پاڼې ئې پلنې وي.

**پلن پزے** :-(پْ + لْ + نْ + پَ + زْ ے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: پلن پزي ، (مؤ : پلن پزې) ] پېزور ، هغه څوک چې پوزه ئې پلنه وي.

**پلن تنے** :- (پْ + لْ + نْ + تَ + نَے) [اف : پ ، اس ، ص ، مذ] د ذکر سر ، د غېږ سر.

**پلنتوب** :- (پْ + لْ + نْ + تو + بْ) [پ ، اس ، مذ] پلنوالے ، پلنتيا د سور لوے والے.

**پلنتيا** :- (پْ + لْ + نْ + تْ + يا) [پ ، اس ، مؤ] و ـــ پلنتوب

**پلندر** :- (پْ + لْ + نْ + دْ + رْ) [پ ،اس ، مذ ، وا ، ج : پلندران] مېرنے پلار ، بنځے پلار.

متل: چې مور مېره شي .پلار پلندر شي.

**پلندۍ** :- (پْ + لَ + نْ + دْ + يَے) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] (۱)جبه ، بوخته (۲) ټګي ، مکر ، فرېب ، دوکه.

**پلنډه** :- (پْ + لَ + نْ + ډْه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پلنډې] پېټے ، پنډه ، ګېډے ، وځکے.

**پلنډي** :- (پْ + لَ + نْ + ډِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پلنډيان] پلنډي ، پنډي ، په مزدورۍ پېټے اوچتوونکے.

**پلن سرے** :- (پْ + لْ + نْ + سَ + رْ ے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پلن سري] (۱) پوړه ، راشبېل ، هغه څيز چې واوره يا سره پرې ټولولے شي.پنسرے (۲) کم عقل ، ناپوهه ، سخا

**پلن غوږے** :- (پْ + لِ + نْ +غُ + وَ + ږَے يا ګے) [اف :پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ،وا ، ج : پلن غوږي (مؤ : پلن غوږے) ] هاتي ، چې غوږونه ئې پلن وي.

**پلنګ** :- (پْ + لَ + نْ + ګْ) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : پلنګونه ، پلنګينه] د نوارو کټ ، پالنګ.

**پلنګ پوش** :- (پلنګ + پو + شْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پلنګ پوشُونه] سوزنۍ ، د کټ څادر چې ګلدار وي.

**پلنګ ګوټے** :- (پلنګ + ګو + ټَے) [پ ، اس ، تصغير ، مذ ، وا ، ج : پلنګ ګوټي] ورکوټے پلنګ.

**پلن ګوټې**:- (پْ + لْ + نْ + ګُ + وْ + ټَې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ارته زاويه ، هغه زاويه چې د نوي درجې نه زياته وي.

**پلنوالے** :- (پْ + لْ + نْ + وا + لَے) [پ ، اس ، مذ ] و ـــ پلنتوب

**پلنول** :- (پْ + لْ + نْ + وْ + لْ) [پ ، مص ، مت] (۱) ارتول ، خورول ويړول (۲) په مزکه راغورزول او وهل ټکول.

دا فلک به چاته هسې خوان کښې نهٔ ږدي
چې د پــاسه ئې پــه لتو پــرې پلن نهٔ کا علي خان

**پلنونګ** :- (پْ + لْ + نْ + وْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و - پلنونه.

**پلنونه** :- (پْ + لْ + نْ + وْ + نَـه) [پ ، حمص] (۱) ارتونه ، ويړونه ، خورونه ، په سارهٔ غوړونه (۲) راپرزونه او ښهٔ وهنه ټکونه.

**پلنوُونکے**:- (پْ + لْ + نْ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا ، ج : پلنوُونکي (مؤ : پلنوونکې) ] (۱) ارتوُونکے ، خوروُونکے ،ويړوونکے (۲) راغورځوونے او ښهٔ وهونکے ټکوونکے

**پلني** :- (پْ + لْ + نيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] کالګير ، هغه هوار لرګے چې موچيان ئې د څپلو جوړولو په وخت تر زنګون لاندې نيسي

**پلنېدل** :- (پْ +لْ +نې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] (۱) ارتېدل ، ويړېدل ، په سارهٔ غوړولے کېدل (۲) په مزکه راغورځولے کېدل او وهلے ټکولے کېدل (۳) څربېدل ، تيارېدل ، مضبوطېدل ، غوښه نيول

**پلنېدنګ** :- (پْ +لْ + نې + دْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و - پلنېدنه.

**پلنېدنه** :- (پْ + لْ + نې + دْ + نَه) [پ ، حمص] (۱) ارتېدنه ، غوړېدنه ، په سارهٔ ويړېدنه (۲) په مزکه راغورځولے کېدنه او ټکولے کېدنه (۳) څربېدنه ، غوښه نيونه.

**پلنبـــدونکے** :- (پْ + لْ + نـبِ + دُو + نْ + کَـے ) [ پ ، مــف ، مــذ ، وا ، ج: پلنبــدونکي (مــؤ : پلنبــدونکې) ] (۱) ارتبــدونکے ، پــه ســارهٔ ویرېدونکے ، غورېدونکے (۲) پـه مزکـه راغورځـولے کېدونکے او تکېدونکے (۳) ځربېدونکے ، غوښه نیوونکے۔

**پلـؤ** :- (پْ + لَـو ) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پلوونـه ] (۱) د څـادر پیڅـه (۲) اړخ ، طرف ، لورے ، څنګ ، ډډه۔ (۳) د خیمې یا تنبو پرده

کــه ئې څوک د مخه لــرې کـړه پلو

د ښائست مخه ئې نیشته هېڅ پلو حمید

ـــــ **اچول**: - (اص) (۱) په څهٔ څیز یا خبره کښې ځان ورګډول (۲) څهٔ څیز په څادر کښې پټول۔

ـــــ **اخستل**: - (اص) (۱) پلو پورته کول ، مخ بربنډول ، مخ ښکاره کول ، (۲) تپوس کول ، مرسته کول ، خیال ساتل۔

ـــــ **پورته کول**: - (اص) و ـــــ پلو اخستل۔

ـــــ **غوټه کول**: - (اص) (۱) پلو ته غوټه ورکول۔ د چا په پلؤ پورې څهٔ تړل ، چا ته څهٔ ورکول ، (۲) د خبرې د یادګیرنې په ډول په سفر تلونکي کس څادر تـه غوټـه ورکول (۳) د چا نـه مـدد غوښتـل۔ اکثـر زنانـه د مدد غوښتلو دپاره د بل کور ته لاړه شي او د کور بـه د ښځې د څادر پیڅه غوټه کړي۔

ـــــ **لرې کول**: - (اص) مخ بربنډول ، مخ ښکاره کول۔

ـــــ **نیول**: - (اص) (۱) د چا د څـادر پیڅـه نیـول (۲) د چا طرفـداري کـول (۳) د چا نه پناه غوښتل۔ د چا خوا نیول ، د چا پـه ځـولۍ کښـې ځـان وراچول (۴) د چا نه معافي غوښتل (۵) په پلو مخ پټول۔

**پـر پلؤ کېدل** :- (اص ) (۱) طرفـداري کـول ، لـورے کـول (۲) یـو طـرف تـه کېدل ، یوې ډډې ته کېدل ، یو خوا ته کېدل ، په څنګ کېدل

**په پلؤ پورې غوټـه کـول** :- ( (۱) د څـادر پـه پیڅـه پـورې څـهٔ څیـز غوټـه کـول (۲) څهٔ خبره یاد ساتل (۳) څهٔ خبرې ته پام کول۔

**په پلو کېدل** :- (اص ) د چا طرفدار کېدل ، د چا په مرسته اودرېدل

**د پلو روئې ور وړل** :- (اص ) د چا نه مدت غوښتل ، که تور سرې د چا سړې په وړاندې د خپل پلؤ روې اوغواړې نو د پښتنو په دود دستور کښې دا خبره په هغه کس لازمي شي چې ددې زنانه مرسته به کوي۔

**پلـــواړي** :- (پَ + لْ + وا + ړِي) [ پ ، ه : پهلـــواړي ، اس ، مـــذ ، وا ، ج: پلواړي ] (۱) باغیچه (۲) سپین ګلاب۔

ګلونه ډېر دي بورا ګل د پلواړې خوښ کړې

زما بې یاره پــه چا زړهٔ سړېدے ولې نهٔ شي حافظ الپوري

**پلوانبه** :- (پَ + لْ + وا + شه یا خه ) [ پ ، اس ، مؤ ] (۱) پلګوانبه پلوښـه ، غوړاشه ، د بټنې سورے ، چې د مزې نه جوړ وي (۲)بنیـاد ، خېـل ، خاندان (۳) زولنه ، ځنځیر۔

بس که دا چې دې په دام د زلفو بند یم

پـــلــوانبه بــــه راه څـــهٔ غـــړے د خط علي خان

**پلوالے** :- (پَ+ لْ + وا لي) [اف :پ (قاموس اس ، مذ] معافي، بخښنه، عفو

**پلوان** :- (پْ + لْ + وا + نْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـ پلمن

**پلوڅه** :- (پَ + لو + نْسـه ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پلوڅې ] پلوسه ، بلنځه ، ژرګه ، یوه ونه۔

**پلوڅکي** :- (پْ + لو + نْس + کِيْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د ګډې یـا بزې وچې پچې چې په پښو پورې ئې زانګې ، بخاټې

**پلودل** :- (پَ + لو + دْ +لْ [ پ، مص مت ] کچ کو، اندازه اخستل ناپ کول۔

بو الهوس د محبت له حده څهٔ زده

په ګامونو مخ د زمکې پلوو نهٔ شي عبدالحمید

**پلور**:-(پْ +لو+ رْ ) [ پ (ب،خ ) اس ، مذ ، وا ، ج : پلورون] پلار ، ابا

**پلور** :- (پْ + لو + رْ) چ پ ، اس ، مذ] بیه ، قیمت ، بها ، سر

**پلور تولے** :- (پلور + تو + لَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] کمپني د یـو څو کسانو شرکت چې په ګډه تجارت کوي۔

**پلورل** :- (پْ + لو + رَ + لْ) [ پ ، مص مت ] خرڅول ، بیه کول

د خپل پلهٔ خاورې دې بیه په عنبر کړې

درتــــه چـــا وې چې پــه دا بهائې پلوره خوشحال

**پلوړلے** :- (پْ + لو + رْ + لَے ) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پلورلي (مؤ پلورلې ) ] خرڅ کړے ، خرڅ شوے ، بیعه شوے۔

**پلورنه** :- (پْ + لو + رْ + نَه ) [ پ ، حمص] خرڅونه ، بیعه کونه۔

**پلورونکـے** :- (پْ + لــو + رُوْ + نْ + کَـے ) [ پ ، اس ، فــاع ، مـذ ، وا ، ج: پلورونکي ( مؤ : پلورُونکې ) ] خرڅوونکے ، بیعه کوونکے۔

**پلورے** :- (پْ + لو + رَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پلوریـان ، (مؤ ، وا: پلورې ، ج پلوریانې ) ] سوداګر ، تاجر۔

**پلورینه** :- (پْ + لو + رِيْ + نَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص] خرڅونه

**پلوسه** :- (پْ + لو + سه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـ پلوسه

**پلوسه** :- (پَ + لو + سَه ) [ پ ، اص ، مؤ ، وا ، ج : پلوسې ] یوه ازغنه ونه چې د ګرمۍ په شروع کېدو زېړ شان ګلونه کوي ۔چې ډېر خوږ بـوئي ترې خېژي ، ونه۔

چې په هر کله جفا کړې وفا هم کړه

دا غــــزیــو ســره ګل لــري پلوسه خوشحال

**پلوشـه** :- (پَ + لْ + وَ + شَـه ) [ پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پلوشـې ] ځړیکـه، څیره ، د نمر د راختو په وخت سرهٔ شُعله ، نور ، تجلي

هغه اور د کوم مظلوم په اوښو مړ شو

چې ئې لــرې غــز و سـم سوهٔ پلو شو حمید

**پلوښه** :- (پَ +لْ + وْ + شَه یا خَه ) [اف :پ (قاموس) اس ، مؤ] و- پلوانبه۔

**پلوغوټــه** :- (پْ + لــو + غُــوْ + ټـه ) [ اف : پ (قـاموس) اس، مـؤ وا ، ج: پلوغوټې ] (۱) د وادهٔ ، سنت یا د نارینه بچي د پېداوښت په خوشۍ راغلو خپلوانو ته د واپس تلو پـه وخت ورکېدونکې ډالۍ (۲) هغـه ډالۍ چې چنغول ئې خپلې چنغلې ته په اول ملاقات ورکوي۔

**پلول** :- (پْ + لْ + وْ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] (۱) بخښـل، معـاف کول، د رخصتۍ په وخت بخښنه کول (۲) ګډ خصي کول ، ټاپل

**پلول** :- (پَ + لْ + وَ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) اس) د مشک مبنبه۔

ـــــ **کول**: - (اص ) مشک مبنل۔

**پلول** :- (پْ + لْ + وْ +لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] د مزکې په قـدمونو کچ کول ، مزکه په ګامونو کول۔

**پلونډ** :- (پَ + لْ + وَ + نْ + ډْ ) [ اف : پ (قـاموس) اس ص ، مـذ ، وا (مؤ ، وا: پلونډه ، ج : پلونډې ) ] مضبوط ، څورب ، پهلوان ، غټ پټ۔

**پلونډ توب** :- (پلونډ + تو + بْ ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مذ] پلونډتیا ، مضبوطیا ، پهلواني ، غټوالے ، څربښت۔

**پلونډتیا**:-(پلونډ + تْ + یا ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـ پلونډتوب

**پلونګ** :- (پْ + لْ + وْ + نْ + ګْ ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـ پلونه

**پلونګ** :- (پَ + لْ + وْ + نْ + ګْ ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـ پلونه

**پلونـه** :- (پْ+لْ + وْ + نَـه ) [اف :پ (قـاموس) حمـص] معـافي، حـق بخښـنه، پلونګ۔

**پلونه** :- (پَ + لْ + وُ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] زمکه په قدمونو کېچ کونه ، زمکه په ګامونو کونه ، پلونګ.

**پلونیا** :- (پْ + لو + نْ + یا) [اف :پ، ع،فلونیا ،اس ] یو قسم معجون ، فلونیا .

**پلوُونکے** :- (پْ + لْ + وُوْ + نْ + کَے ) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع مذ ، وا ، ج : پلوُونکي (مؤ : پلوُونکې) ] معاف کوونکے ، حق بخښونکے .

**پلوونکے** :- (پَ + لْ + وُوْ + نْ + کَے ) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پلوونکي (مؤ : پلوونکې ) ] زمکه په قدمونو کېچ کوونکے ، زمکه په ګامونو کوونکے .

**پلوئ** :- (پَ + لَ + وَ + يَئ ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] کچنه ګوته، چیچنه ګوته.

**پلوے** :- (پْ + لْ + وَے ) [پ ، (ب، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : پلوي] په غوبل کښې بهر طرف ته غوبائے ، چرمباز .

**پلوے** :- (پْ + لْ + وَے ) [اف : پ (قاموس) ص] (۱) پلویځ ، ګوانډي ، همسایه (۲) مرستیال.

**پلویځ** :- (پْ + لْ + وِيْ + ذْ) [پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پلویځه ، ج: پلویحې) ] (۱) ګوانډي ، همسایه ،(۲) ملګرے ، طرفدار ، مرستیال ،

**پله** :- (پْ + لَه ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پلې ] وجه ، پته.

ـــــ **خوربدل**: - (اص) د پټې درد کول.

**پله** :- (پَ + لَه ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پلې ] (۱) د تلې یو طرف ، چاپړے ، (۲) په طرف ، پلو (۳) موقع ، وار ، ځل (۴) د دروازې یا ور یوه تمبه.

ـــــ **پرې پیدا کول**: - (اف) اص. برے موندل ، بریالے کېدل.

ـــــ **خوربدل**: - (اص) د تلې یو څنګ درنېدل.

ـــــ **نیول**: - (اص) طرفداري کول ، د چا په طرف یا مرسته اودرېدل پر پله درېدل

**پر پله دربدل** :- (اص) و ـــ پله نیول

**پله ایلی** :- (پْ + له + اِيْ + لَی ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] یو قسم مرغابۍ.

**پله پسې** :- (پْ + له + پَ + سې ) [پ ، ص ] پرله پسې ، یو بل پسې په یو مخ.

**پله پسې توب** :- (پله پسې + تو + بْ ) [پ ، اس ، مذ ] پله پسې والے پرله پسې توب

**پله پسې والے** :- (پله پسې + وا + لَے ) [پ ، اس ، مذ] و ـــ پله پسې توب.

**پله پورې** :- (پْ + له + پو + رې ) [پ ، ص ] پرله پورې ، پېوست ، ښخ ، سره ترلے

ـــــ **کول**: - (اص) پرله پورې کول ، سره ترل ، پیوست کول.

ـــــ **کېدل**: - (اص) پرله پورې کېدل ، سره ترلے کېدل. پیوست کېدل

**پله تیره** :- (پْ + لَه + تيْ + ژه یا ګَه ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پلې تیرې ] دُوربدونکې تیره.

**پلی** :- (پْ + لَ + يَی ) [پ ، اس ، مؤ] (۱) د لوبیا ، متر ، موټ یا مئی د ګوتې په شان هغه حصه چې دانې پکښې وي (۲) اف : د انګورو هغه څانګې چې د انګورو شوکولو نه پس سره ترلے شي.

**پلی** :- (پَ + لَ + يَی ) [پ (ظفر) اس ،مؤ] (۱) د ارټ د چکر لرګے ګرارۍ ، څرخ (۲) کرنډۍ.

**پُلی** :- (پُ + لَ + يَی ) [پ ، اس ، مؤ] پُولۍ ، تناکه.

**پلی** :-(پْ + لی ) [پ (ب،خ) اس، مذ ،وا ، ج : پلي ] (۱) و ـــ پلی (۲) چابي ، نوسے ، کُنجي ، سپار.

**پلے** :- (پَ + لَے ) [پ، اس ، مذ ، وا ، ج : پلي (مؤ : پلې ، پلیه )] (۱) پیاده ، پېدل ، په خپلو پښو (۲) اف : د مهي یا کب یو لوے قسم

که دلې د خداے د پاره پلے ګرځي

د جنت په براقونو به شي سور حمید

**پلپل** :- (پَ + لي + پَ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ]پاپلې ، پال پې ، د ماشوم اول اول قدم اخستل.

**پلیت** :- (پَ + لِيْ + تْ ) [ پ ، فا : پلید ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا: پلیته ، ج : پلیتې ) ] (۱) مردار ، ګنده ، سخا ، ناپاک ، بېلماز ، ناولے (۲) بدعمله ، بدکردار ، ورانکارے ، بدمعاش.

متل: په پلیت بوټي سپے هم پټیازې نۀ کوي .

ـــــ **بوټے**: - (اص) (۱) ناپاک او بېلماز بُوټے (۲) شېطان او ورانکارے

**پلیتې اوبۀ** :- (اص) ناپاکې اوبۀ ، سخا اوبۀ ، مرداري اوبۀ.

**پلیتن** :- (پَ + لي+ تَ + نْ) [پ، اس ، مذ ] وـ پټلین

ټپه: خدایه ! ما د جولازُوم کړې

چې پلیتن ئې لکه توپه ګرځومه!

**پلیتول** :- (پ + لِيْ + تَ + وْ + لْ) [پ ، مص مت ] ناپاکول ، ګنده کول ، سخا کول.

**پلیتونګ** :- (پَ + لِيْ + تَ + وْ + نْ + ګْ ) [اف : پ (قاموس) حمص]و- پلیتونه

**پلیتونه** :- (پَ + لِيْ + تَ + وْ + نَه ) [پ ، حمص] پلیتونګ ، ناپاکونه ، بېلمازونه ، مردارونه ، ګنده کونه ، سخا کونه.

**پلیتونے** :- (پْ + لِيْ + تَو + نے ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج: پلیتوني ] هغه لرګے چې پنبه یا وړۍ پر تاوولے شي.

**پلیتوُونکے** :- (پَ + لِيْ + تَ + وُوْ ) نْ + کَے ) [پ ، اس ،فاع ، مذ ، وا ، ج: پلیتونکي ، (مؤ : پلیتونکې) ] ناپاکوونکے ، سخا کوونکے ، بېلمازه کوونکے ، ګنده کوونکے ، مرداروونکے.

**پلیته** :- (پَ + لِيْ + تَه ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پلیتې ] (۱) د ډیوې باتۍ ، رټ (۲) د جوار وړے چې اول پټ نیسي.

**پلیته** :- (پَ +لِيْ + تَه) [پ (ګن) اس ، مؤ،وا ، ج : پلیتې] د کپړې کڅوړۍ چې د مړي د لامبولو په وخت ئې غُسل ورکوونکے لاسونو ته اچوي.

**پلیتي** :- (پَ + لِيْ + تيْ ) [پ ، اس ، مؤ] (۱) ناپاکي ، بېلمازتوب، سخاتوب ، ګندګي (۲) بدمعاش ، ورانکاري ، بدعملي.

**پلیتېدل** :- (پَ + لِيْ + تې + دْ + لْ ) [پ ، مص لا] (۱) ناپاک کېدل سخا کېدل ، بېلماز کېدل ، ګنده کېدل (۲) ورانکارے کېدل ، بدمعاشېدل ، بدعمله کېدل.

**پلیتېدنګ** :- (پَ+لِيْ + تې+ دَ نْ + ګْ ) [اف : پ (قاموس) حمص ] و - پلیتېدنه

**پلیتېدنه** :- (پَ + لِيْ + تې + دْ + نَه ) [پ ، حمص ] ناپاک کېدنه ، بېلماز کېدنه ، سخا کېدنه ، ګنده کېدنه.

**پلیتېدونکے** :- (پَ + لِيْ +تې +دُوْ +نْ + کَے ) [پ ،مف ، مذ ،وا ،ج: پلیتېدونکي (مؤ : پلیتېدونکې) ] ناپاک کېدونکے ، بېلماز کېدونکے ، سخا کېدونکے ، ګنده کېدونکے.

**پلیتېدۀ** :- (پَ + لِيْ + تې + دۀ ) [پ ، حمص] و ـــ پلیتېدنه.

**پلېټ**:-(پْ + لَې+ټْ ) [انګ،اس،مذ ، وا ، ج: پلېټونه ] رکابۍ ، تالے.

**پلېټ فارم** :- (پلېټ + فا + رْ + مْ ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پلېټ فارمونه ] (۱) دونکاچه ، هغه ځاے چې رېل ګاډے پرې اودرېږي او خلق په رېل کښې سورېږي او ورنه کوزېږي (۲) مرکز

**پلېټن** :- (پْ + لې + ټْ + نْ ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پلېټنونه ] (و ـــ پټېلن)

**پلېڅې** :- (پْ + لېِ + څْـى) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] يوه اوچته ونه چې پاڼې ئې اوښان خوري.

**پليډر** :- (پْ + لـيْ + ډَ + رْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پلېډران (مؤ ، وا : پلېډره ، ج : پلېډرې) ] وکيل ، قانون دان.

**پليز** :- (پْ + لِيْ + زْ) [انګ ، اس] مهرباني اوکړئ.

**پلـيش** :- (پْ + لـيْ + شْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] د يـوې ونـې پوستکے چې شپونکي د چقماق په ذريعه اور پرې بلوي.

**پلېکو** :- (پْ + لېِ + کو) [اف : پ (قاموس) اس ،مذ] پېکو ، دنګ

**پلېګ** :- (پ + لـې + ګْ) [انګ ، اس ، مذ] طاعون ، يو داسې وبائي مرض چې په مغزي دانې راوخېژي او سړے مړ شي.

**پلېل** :- (پْ + لې + لْ) [پ ، اس ، مذ] پُلېل ، خوشبويه تېل ، عطر

**پُلېل** :- (پُ + لې + لْ) [پ (ګن) اس ، مذ] و ـــ پلېل

**پلېمن** :- (پْ + لې + مَ + نْ) [پ ، اس ، مذ] و ـــ پلمن

**پلېمه** :- (پْ + لې + مَه) [پ (وز) اس ، مذ] و ـــ پلمن

**پلېن** :- (پْ + لې + نْ) [انګ ، اس ، مذ] (۱) ساده (۲) هوار ، ښوئے

**پلېنـه** :- (پْ + لـې + نَـه) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج پلېـنګے] پلېونـه ، د مسواک ونه ، بائېکړ.

**پلېنه** :- (پْ + لې + نه) [پ (ب، خ) اس، مذ] و ـــ پلمن

**پليـه** :- (پَ + لْ + يَـه) [پ (ګـن) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پليـې] پلـې ، پيـاده، پېدل ، په خپلو پښو.

**پم** :- (پَ + مْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پمُونه] (۱) خارښت ، پمنتـوب ، (۲) د جوارو او د نورو دانو خوري يا پوستکي ، پمبې (۳) خخوزې.

بـد خـو پـم دے مصـري خـان پـرې ګرفتـار شـو
پـه تبـديـل ئـې ګونـدې روغ شـي پمـن رو رو

**ـــ پوري کېدل** :- (اص) (۱) خارښت لګېدل (۲) د خلقو د نظر نه لوېدل ، د خلقو په نظر کښې سپکېدل.

**ـــ لګېدل** :- (اص) خارشي کېدل ، د خارښت مرض لګېدل ، پمنېدل

**پماني** :- (پَ + ما + نِيْ) [پ، اس ، مؤ] پمنې ، پمنکے ، پمنه ، پونې ، يو غرئيز بوټے چې پاڼې نئ لري . د ګوتې په شان خېږ خېږ ډنډاري لـري . خوند ئې تريخ شان وي او ود ترکارۍ په دود پخولے شي.

**پمبـه** :- (پَ + مْ + بَـه) [اف : پ (قـاموس) اس] خخـوځکے ، چوخـانړے ، خورَے ټوټه ، د څۀ څيز ذره.

**پُمبه** :- (پُ + مْ + بَه) [پ ، اس ، مؤ] پُنبه ، مالُوچ ، کوبوسکه ،کپا
متل: پُمبه کره په جبېټ چې سړے شي پکښې سبېټ.

**پمبې** :- (پَ + مْ + بَې) [اف :پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پمبې] (۱) پم د شولو يا د جوارو د دانو خوري يـا پوسـتکي ، اخـور ، تـومبې ، او کرانړې ، تان.

**پمبې چـو** :-(پُ + مْ + بې + چُوْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] کالکـه، د خشکې پُمبې زړے.

**پُمبې مشر** :- (پُ + مْ + بې + مْ + شَ + رْ) [پ ، اس ، مذ، وا] ميراخور ، د اصطبل داروغه.

**پمـپ** :- (پَ + مْ + پْ) [انـګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پمپُونـه ، پمپينـه] (۱) پچاري، د باد ورکولو اله ، د اوبو راکښلو يا اوچتولو مشين

**پمپـي** :- (پَ + مْ + پِيْ) [اس، مـؤ] د زنانـۀ د اسـتعمال سـپک شـان ګُورګابې.

**پمپيائي** :- (پَ + مْ + پ + يا + ئِيْ) [اس ، معر] د اټلي په ملک کښې هغه زوړ مشهور ښهر چې په کال درې شپېتم عيسوي کښې سوے وو.

**پمفلـټ** :- (پَ + مْ + فْ + لِ + ټْ) [انـګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پمفلټونـه] کتابګوټے ، کتابچه ، ورکوټې شان رساله.

**پمن** :- (پْ + مْ + نْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : (مؤ ، وا: پمنه ، ج: پمنې] (۱) پم ، پَون ، خارښتي.

هسې زۀ د ځان په غوښو کښې عشق بوخت کړمه
لـــکـــه نـــۀ خېژي لــــه ځــانه د پمن لاس حميد

**ـــ کول** :-(اص) (۱) پمنول،د خارښت په مرض اخته کول (۲) خوارول، نېستمن کول

**ـــ کېدل** :- (اص) (۱) پمنېـدل ، د خارښـت پـه مـرض اختـه کېـدل (۲) خوارېدل ، نېستمن کېدل.

**پمنتوب** :- (پمن + تو + بْ) [پ ، اس ، مذ] پمنتيا ، پمنوالے ، خارښت لګېدل ، خارښتي کېدل.

**پمنتيا** :- (پمن + تْ + يا) [پ ، اس ، مؤ] و ـــ پمنتوب

**پمـن چيـنچن** :- (پمـن + چـي + نْ + چَ + نْ) [پ ، اس ، ص ، مـذ (مؤ، وا: پمنـه چينجنـه ، ج : پمنـې ، چينجنـې) ] (۱) پمـن کـوړن ، سـخا پمـن (۲) ډېر خوار ، نېستي وهلے ، د پولې پړک ته ناست.

**پمن سپے** :- (پمـن + سْ + پَے) [پ ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : پمـن سپي] (۱) د پمنتوب په مرض اخته سپے (۲) سخا ګنده سړے ، هغـه څوک چې د شرارت او بد خويۍ په وجه ئې خلق ځان ته نژدې نۀ راپرېږدي.

**پمن کوړ** :- (پْ + مْ + نْ + کو + ړْ) [پ (ظفر) اس، مذ] د برص مرض، په څرمن د سپينو داغونو مرض لګېدل.

**پمن کوړن** :- (پمن + کو + ړَ + نْ) [پ ، اس ، ص ، مذ (وا: پمنه کوړنه ، ج : پمنـې کـوړنې) ] (۱) پمـن چيـنجن ، سـخاپمن ، د پـم او کـوړ پـه مرض بيمار (۲) ډېر خوار ، نېستي وهلے.

**پمنکے** :- (پْ + مْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، مذ] پمنے ، پَونے ، پماني ،

**پمنوالے** :- (پمن + وا + لے) [پ ، اس ، مذ] و ـــ پمنتوب

**پمنـول** :- (پْ + مْ + نْ + وْ + لْ) پ ، مـص مـت] (۱) خارښـتي کـول ، د خارښت مرض لګول ، پمن کـول (۲) خوارول ، نېسـتمن کـول ، لـوچ لغړ کول.

**پمنونـه** :- (پْ + مْ + نْ + وْ + نَـه) (پ حمـص] (۱) خارښـت کونـه ، د خارښت مرض لګونه ، پمن کونه ، (۲) خوارونه ، نېستمن کونه، لچ لغړ کونه.

**پمنُوونکے** :- (پْ + مْ + نْ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : پمنوونکي (مؤ : پمنُوونکې) ] (۱) خارښت لګوونکے ، پمن کوونکے ، پم لګوونکے (۲) خوارووونکے ، نېستمن کوونکے لوچ لغړ کوونکے.

**پمنے** :- (پْ + مَ + نَے) [اس ، مذ] پمنکے ، پمنے

د چا په بخره د مېو جام دي
د چـا پـــه بخره پرې ېمني خوشحال

**پمنېدل** :- (پ + مْ + نې + دْ + ل) [پ مص لا] خارښت لګېـدل ، پم کېـدل (۲) خوارېدل ، نېستمن کېدل.

**پمنېدنګ** :- (پْ + مْ + نې + دْ + نْ + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص] و- پمنېدنه

**پمنېدنه** :-(پْ + نْ + نې + دْ + نَه) [پ ، حمص] (۱) پمنېـدنګ ، پمنېـدۀ ، خارښت لګېدنه ، پم کېدنه (۲) خوارېدنه ، نېستمن کېدنه

**پمنېـدونکے** :- (پْ + مْ + نـې + دُوْ + نْ + کَـے) [پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: پمنېـدونکي (مـؤ : پمنېـدونکې) ] (۱) خارښـت لګېـدونکے ، پـم لګېدونکے (۲) خوارېدونکے ، نېستمن کېدونکے.

**پمنېدۀ** :- (پْ + مْ + نې + دۀ) [پ ، حمص] و ـــ پمنېدنه

**پن** :- (پ + نْ) [پ (سو) اس ، مذ] پند ، سفر ، مزل

ـــــ **کول**:- (اص) سفر کول ، مزل کول.
**پـن** :- (پِ + نْ) [ انـګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پنُونـه ، پنینـه ] (۱) قلـم ، (۲) ټوپې داره ستن چې کاغذونه پرې یو ځاے کولے شي.
**پنا** :-(پْ+نا ) [ پ ، فا : پناه ، اس ، مؤ] (۱) غـائـب ، پټ ، چې څرګند نۀ وي ، په ډډه (۲) امن ، حفاظت ، مرستـه ، سوبره (۳) فنـا ، (۴) اف : نرے باران ، پونۍ ، پُوار.
متل: څۀ د نظر نه پنا ، څۀ د غر نه پنا
بیا به نۀ مومي هېڅوک په دواړه داره
بـــل دا هسې د پنـــــا د امــــن دار مصري خان
ـــــ **اخستل**:- (اص) (۱) د چا په خوا کښې د مخالف نه پټېدل ، د چا په سپوره کښې ورتلل ، په ډډه کېدل (۲) په څۀ کښې کښېناستل
ـــــ **غوښتل**:- (اص) امن غوښتل ، پنا نیول ، د چا سیمه نیول ، د چا نه د مدت او ژغورنې سوال کول.
ـــــ **کښې راتلل**:- (اص) پناه ورکېدل ،
ـــــ **کول**:- (اص) (۱) پټول ، غیبول ، (۲) ختمـول ، فنا کـول ، تباه کـول (۳) اف : اوبۀ چړکاؤ کول ، تر مکاؤ کول.
ـــــ **کېدل**:- (اص) (۱) پټېدل ، پـه ډډه کېـدل ،(۲) فنا کېـدل ، تبـاه کېـدل (۳) د نظرنه غیبېدل ، اوښتل.(۴) اف : نرے باران یا پُوار ورېدل
ـــــ **نیول**:- (اص) و ـــــ پناه غوښتل.
ـــــ **ورکول**:-(اص) څوک په خپـل امـن کښې اخستـل ، څوک د ځان سره محفوظ ساتل ، څوک تر خپله سوېره لاندې ساتل ، پنائي ورکول.
ـــــ **ورکېدل**:- (اص) پنائي ورکېدل ، د چا په ډډه پورې پنا مونـدل ، د چا په پنائي او ژغورنه کښې راتلل ، پناه کښې راتلل.
ـــــ **وړل**:- (اص) پټ پټ تلل ، په څۀ څۀ کښې وراندې حرکت کول.
**پناګیر** :- (پْ + نا + ګيْ + رْ ) [ پ ، فـا : پناه ګیـر ، اس ، مـذ ، وا ، (مؤ : پناګیره ، ج : پناګیرې ) ] پنا اخستونکے ، پنا غوښتونکے مهاجر.
**پنا مخ** :-(پْ+نا+ مْ + خْ ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، ص مـذ ] پسـي شـا ، پشي شا ، پشلا ، چې موجود نۀ وي ، مخ پنا.
**پناه** :- (پْ + نا + هْ ) [ فا ، اس ، مؤ] و ـــــ پنا
ببخـــودي هســـې پناه ده زوره وره
چې له هره غمه خلاص کاندي سرے رحمٰن بابا
**پنائي** :- (پْ + نا + ئيْ ) [ پ ، اس ، مؤ] (۱) پنا (۲) پرده ، دیوال
د زړۀ سترګو ته د غرۀ پنائي هېڅ ده
د صورت سترګو ته غر شي نرۍ پاڼه مصري خان
ـــــ **جوړول**:- (اص) د پردې دیوال جوړول (۲) پرده اوېزاندول
**پُنبه** :- (پُ + نْ + بَه ) [ پ ، اس ، مؤ] مالوچ ، پُمبه
جنـګـــوم اور او پُنبه انـــا د اینه
چې جلب د ستا د ناز نیسم په ناز حمید
**پنج** :- (پَ + نْ + جْ ) [ فا ، اس ، مذ ] (۱) پینځۀ (۲) تکي ، دوکه
متل :- هر چا سره پنج ، یار سره نۀ پنج.
**پنجاب** :- (پَ +نْ + جا + بْ ) [ فـا ، اس ، معر ، مذ ] (۱) پینځۀ دریابونه (۲) د پاکستان یوه لویه صوبه چې مرکز ئې لاهور دے.
**پنجابے** :- (پَ + نْ + جا + بَے ) [ پ تر ، مذ ، وا ، ج: پنجابیـان ] د پنجاب اوسېدونکے.
**پنجـــابي** :- (پَ + نْ + جـــا + بِـيْ ) [ پ ، اس ، مـؤ] (۱) پنجـابي ژبـه (۲) پنجاب سره تعلق لرونکے څیز.
**پنجـــالی** :- (پَ + نْ + جـــا + لَ + یْ ) [ پ (ګـن) اس ، مـؤ] (۱) جـغ ، ژغ (۲) (ب،خ) د جغ یا ژغ لاندینۍ حصه.
**پنجالۍ** :-(پَ + نْ + جا + لَ + یَ ) [ پ (سو) اس ، مؤ ] هغه پنجره شان چې په مکانونو کښې د ډول او پنائي دپاره لګولے شي ، جفري.
**پنجالي** :- (پَ + نْ + جا + لِيْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ،مؤ] دریڅه
**پـنج بنا** :- (پَ + نْ + جْ + بَ + نـا ) [ فـا تـر ، اس ، مـؤ] (۱) پینځـۀ ستنې (۲) د اسـلام پینځـۀ ارکـان ، د توحید کلمـه ، نمـونځ ، روژه ، حـج ، زکوٰة ، پینځۀ بنا.
**پنج پاؤ** :- (پنج + پاؤ ) [ پ ، اس ، معر ] پېښور سره نزدې یو کلے.
**پنج پائي** :- (پنج + پا+ ئيْ ) [ پ ، اس ، ص ] د پنج پاؤ کلي اوسېدونکي.
**پنجپیر** :- (پَ + نْ + جْ + پِيْ + رْ ) [ پ ، اس ، معـر ، مذ] یوسفزو کښې د یو مشهور کلي نوم.
د موضع نوم ئې پنجپیر دے
چې دواړو کلیـــو مـــیر دے مصري خان
**پنجتار** :- (پنج+ تا + رْ ) [ پ ، اس ، معر ، مذ] د صوابۍ په تحصیل کښې یو تاریخي کلے چې د سید احمد شاه بریلوي د تحریک مرکز ؤ.
**پنج تن** :- (پنج + تَ + نْ ) [ فـا تر ، اس ، مذ ] پنج تن پـاک ، رسول کریم صل الله علیه وسلم ، حضرت علي رض، حضرت فاطمه رض، حضـرت امام حسن رض او حضرت امام حسین رض.
**پنج تن پاک** :- (پنج تن + پا + کْ ) [ فاتر ، اس ،مذ] و ـــــ پنج تن
**پـنج روزه** :- (پنـج + رو + زَه ) [ فـا تـر ، اس] (۱) پینځـۀ ورځنـے ، د پنځـو ورځو (۲) مختصر ژوندون ، لنډ ژوندون.
**پنجـــره** :- (پَ + نْ + جْ + رَه ) [ ه ، اس ، مــؤ ، ج : پنجــرې ] پینجـــره ، د مرغانو د بند ساتلو قفس.
وائي وانوت روح مرغه له دے دامګاه
لــــه پنـــجــرې سره د تــن له آرامګاه حمید
**پنجره داري** :- (پنجره + دا + رې ) [ پ (سو) اس ، ص ، مؤ ،ج ] (۱) هغـه څپلۍ چې پاسنۍ حصه ئې تسمه داره وي (۲) هغه ډکې څپلۍ چې یو خاص شان د طلې ګلکاري پرې شوې وي.
**پـنج سـوره**:- (پـنج + سُوْ + رَه ) [ فـا تـر ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پـنج سُورې] پینځۀ سورتونه ، هغـه ورکوټے کتـاب چې پینځـۀ مشهور سورتونه وي په کښې.
قرآن که پنج سوره وي چې همېش ئې تلاوت کړې
شغل د حـــدیث چې ئې تــــر هـــر څــــۀ بهتري مصري خان
**پنجشنبه** :-(پنج + شَ + مْ + بَه ) [ فا ، اس ، مؤ] زیارت ، اودینه ، خمیس
**پنج غاښے** :- (پنج + غـا + شَـے یـا خَـے ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پنج غاښي ] (۱) پنج غاشے ، پنج غشے ، پنج غښے ، هغه ځناور چې عمر ئې پینځۀ کاله وي .(۲) د لرګي نه جوړ هغه څیز چې پینځۀ غاښونه ئې وي.او په زمکه کښې پُولې پرې جوړولے شي.
**پـنج غښے** :- (پـنج + غْ + شَـے یـا خَـے ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پـنج غښي ] و ـــــ پنج غاښے.
**پنجکے** :- (پَ + نْ + جْ + کَے ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] د دروازې موتړے ، موتړۍ.
**پنجګانه** :- (پنج + ګا + نَه ) [ فا ، ص ] پنجوخته ، پینځۀ وخته.
**پنج ګنج** :- (پـنج + ګَ + نْ + جْ ) [ فـا ، اس ، مـر ، مـذ] (۱) پینځـۀ خزانې (۲) د نظامي یو مشهور کتاب.
**پنجو** :- (پَ + نْ + جُوْ ) [ پ ، اس ، مذ] اخون پنجو بابا.
**پنجوخته** :- (پنج + وَ + خْ + تَه ) [ پ ، ص ] و ـــــ پنجګانه.

**پنجو خېل**:- (پنجو + خې + لْ) [پ ، اس ] (۱) د مروتو د علاقې يوه قبيله (۲) د اخون پنجو بابا اولاد.

**پنجه** :- (پَ + نْ + جَه) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پنجې ] (۱) د لاس ګوتې او تلے (۲) د پنځو روپو نوټ.

چې رادرومي له چمنه ستا لمن ته
د هر ګل منګل پنجه زلېخائې ده معزالله

**ـــــ اچول**:- (اص) (۱) لاس ملاوول ، روغ جوړ کول ، سترې مشې دپاره چا تـه لاس ورکـول (۲) زور ازمائيـل (۳) پـه څـۀ خبـره کښـې ځـان ورګډول (۴) انښتل ، جنګ کول (۵) قول پخول.

**ـــــ زغمل**:- (اص) زور زغمل ، څۀ بوج يا دباؤ برداشت کول ،

**ـــــ ښخول**:- (اص) (۱) نوکارې لګول (۲) د لاس پـه پنجـه ځـان ټينګـول (۳) چرته ځان ته ځائے پيدا کول.

**ـــــ ملاوول**:- (اص) (۱) لاس ملاوول ، سترې مشې کول ، پنجه ورکـول (۲) د څۀ خبرې تعريف کول او د منـنې کولـو پـه ډول لاس ورکـول . (۳) لوظ کول ، قول پخول.

**ـــــ ورکول**:-(اص) (۱) و ـــ پنجه ملاوول (۲) د پنځو روپو نوټ ورکول

**ـــــ وهل**:- (اص) (۱) په پنجې ګذار کول (۲) مقابله کول.

**پنجې لګول** :- (اص) (۱) نوکې يا نوکارې لګول ، (۲) د ځان ټينګولو دپاره د لاس ګوتې مضبوطې ښخول (۳) يو ځاے کښې ځان ورننه ايستل.

**په پنجو وهل** :- (اص) په څپېړو وهل ، څپېړې ورخلاصول.

**پنجه خوړي** :-(پَ + نْ + جه + خُو + ړِيْ) [پ (سو) ص ] ډېر ګڼ ،ډېرزيـات شمار کښې.

**پُنځ** :- (پُ + نْ + دْز) [اف : پ (قاموس ، ق) اس ، مذ] پېداوښت ،

چې شو ښکاره ښکلي وښا شوه
د پُنځ پـــــه لـــــوري ئې ربا شوه شېخ عيسیٰ

**پنځ پيسيز** :- (پ+ نْ + دْز + پَي + سيِ + زْ) [پ ، اس ، ص ، مذ] د پنځو پيسو سکه.

**پـنځ ټکيـز** :- (پ + نْ + دْز + ټَ + کيِ + زْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مذ] پينځۀ ډزے ټوپک ، پنډ زے.

**پنځ څنډ** :-(پ+ نْ + دْز + څْسَ + نْ + ډْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص، مـذ ( مؤ ، وا: پنځ څنډه ، ج : پنځ څنډې ) ] پينځۀ ګوټے ، مخمس

**پينځۀ روپـه ګيـز** :- (پ + نْ + دْز + رُوْ + پَـه + ګيِ + زْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] د پنځو روپو نوټ ، پنجه.

**پنځ سويز** :- (پ + نْ + دْز + سْ + وِيْ + زْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مذ] د پنځو سوؤ.

**پنځ سېرے** :- (پنځ + سې + رَے) [پ ، اس ص ، مذ] د پنځو سېرو د تول کانړے.

**پـنځ غبنبــے** :- (پـنځ + غَ + شَـے يـا غَ + خَـے) [پ ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج: پنځ غبنبې (مؤ : پنځ غبنبۍ) ] پينځۀ غبنبے ، هغه څناور چې عمر ئې پينځۀ کاله وي.پنځ کليز.

**پنځ کابليزه** :- (پ + نْ + دْز + کا + بْ + لِيْ + زَه) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج : پنځ کابليزې) ] د پنځو روپو سکه.

**پنځ کلن** :- (پنځ + کَ + لَ + نْ) [پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پنځ کلنه ، ج : پنځ کلنې) ] پنځ کليز ، د پنځو کالو،

**پنځ کليز** :- (پنځ + کَ+ لِيْ + زْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا، (مؤ ، وا: پنځ کليزه ، ج : پنځ کليزې) ] و ـــ پنځ کلن.

**پـنځ کليـزه** :- (پـنځ + کَ + لـيْ + زَه) [پ ، اس ، ص ، مـؤ ، وا، ج: پـنځ کليزې) ] (۱) د پنځو کالو، (۲) د پنځو کالو دپاره.

**ـــــ منصوبه**:- (اص) د ملک د ترقۍ دپاره د حکومت جوړه کړې هغه منصوبه چې په پينځۀ کاله کښې به سرته رسولے شي.

**پنځ ګوټے** :- (پ+نْ+ دْز + ګُوْ + ټَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: پنځ ګوټي (مؤ : پنځ ګوټې) ] پنځ څنډ ، پينځۀ زاوې لرونکے ، پينځۀ ګُوټے.

**پنځ ګونے** :- (پ + نْ + دْز + ګُوْ + نَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پنځ ګوني (مؤ : پنځ ګونې) ] پينځۀ چنده ، پينځۀ غبرګه.

**پـنځلس** :- (پ + نْ + دْزْ + لَ + سْ) [پ ، اس ، عـدد] پينځـۀ او لـس ، د شلو نه پينځۀ کم.

**پنځلسم** :- (پ + نْ + دْز + لَ + سَ + مْ) [پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پنځلسمه) ] (۱) پـه شـمار او قطـار کښـې د څوارلسـونه پـس نمبـر بانـدې (۲) پنځلسې ، شوقدر ، شب برات.

**پنځلسې** :- (پ + نْ + دْ. + لَ + سَې) [پ ، اس ، مذ] پنځلسم ، شب برات ، شوقدر.

**پـنځم** :- (پ + نْ + دْزَ + مْ) [پ ، ص ، مـذ (مـؤ : پنځـمه) ] (۱) پـه پـنځم نمبر ، په قطار يا شمار کښې په څلورو پسې (۲) د شروع ورځ ، بدهٔ ، چارشنبه.

دا څلور واړه تتنې په څلور کنجه
او پنځم ئې صراحي د مېوانـاب رحمٰن بابا

**پنځوس** :- (پَ + نْ + دْزو + سْ) [پ ، اس ، عدد ) لس دپاسه څلوېښت ، دوه نيم شله.

ځاے د بلاغت دے عقل ورشي تر کماله
هورتـــــه تر پنځو سووې زحمتې جسماني مصري خان

**پنځوسم** :- (پَ + نْ + دْزو + سَ+ مْ) [پ ، ص ، مـذ ،مـؤ: پنځوسـمه)] پـه شمار او قطار کښې په نهه څلوېښتم پسې ، پنځوسيز.

**پنځوس مشر**:- (پنځوس + مْ + شَ + رْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ (مـؤ : پنځوس مشره) ] د پنځوسو کسانو مشر ، پلټون کمانډر

**پنځوسيز** :- (پ + نْ + دْزو + سيِ + زْ) [اف : پ (قـاموس) اس ص ، مـذ ، (مـؤ ، وا: پنځوسيزه ، ج : پنځوسيزې) ] د پنځوسـو ، پنځوسـم ، د پنځوسو سره تعلق لرونکے.

**پنځـول**:-(پْ + نْ + دْزْ + وْ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص ، مـت ] (۱) پېـدا کول ، تخليق کول (۲) د غلې ترټه يا کندُو ډکول ، (۳) کامیابول.

**پنځولے** :- (پْ + نْ + دْزْ + وْ + لَے) [اف : پ (قـاموس) مف ، مـذ ، وا ، ج : پنځولي ، (مؤ : پنځولې) ] پيدا کړے ، تخليق کړے.

**پنځون** :- (پْ+نْ+دْزْ+وُ+نْ) [اف: پ(قاموس) اس ، مذ] طبيعت ، طبع.

**پنځونګ** :- (پْ+نْ+دْزْ+وْ+نْ+ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص]و ـــــ پنځونه

**پنځونه** :- (پْ + نْ + دْزْ و + نه) [اف : پ (قـاموس) حمص ] (۱) پېدا کونـه ، تخليق کونه (۲) د غلې ترټه يا کندُو ډکونه (۳) کاميابونه

**پينځۀ** :- (پْ + نْ + دْزْهْ) [اف : پ (قاموس) اس ] تخليق ، پېداوښت

**پينځۀ** :- (پ+نْ+دْزهْ) [پ ، اس ، عدد] په شمار کښې په څلورو پسې (۵)

**ـــــ پاوه**:- (اص) (۱) يوه روپۍ پنځوېشت پيسې (۲) يو سېر څلور چټاکه (۳) يو ګز څلور ګرې (۴) پـه سوات کښـې د جائيـداد د تقسيم يـوه حصه (۵) د صدقې او شکرانې يو مقرر رقم چې اکثر ئې خلک د منښتې په ډول ورکوي (۶) د دم درود شکرانه.

د کمزوري مال ديده دانسته اوخوري
لس د ځان پنځۀ د بل کړي بې انصافه معزالله خان

**ـــــ پـاوه اخستل**:- (اص) د شکرانې پـه ډول د دم درُود يـا څانښت تعـويز پينځۀ پاوه اخستل.

**ـــــ پاوه منل**:- (اص) د منبنتي په ډول د پنځو پاوو د شکرانې ورکولو وعده کول.

**ـــــ کاسیرې**:- (اص) د پیران پیر صاحب د نوم صدقه، چې د خدا ے تعالیٰ په لار کښې ورکولے شي.

**ـــــ گوتې خولې ته منډل**:- (اص) بې صبري کول، هر څۀ ځان ته راکښل.

**ـــــ ورځې**:- (اص) لږ ژوندون، کم عمر.

**پينځۀ اتيا** :- ( پينځۀ + اَ + تْ + يا ) [ پ ، اس ، عدد] پينځۀ دپاسه اتيا، پينځۀ کم نوي (۸۵)

**پينځۀ اتيايم** :- ( پينځۀ + اَ + تْ + يا + يَ + مْ ) [ پ ، اس ، عدد ، مذ ، (مؤ ، وا: پينځۀ اتيايمه ) ] په شمار اوقطار کښې په پينځۀ دپاسه اتيا نمبر باندې.

**پينځۀ اويا** :- ( پينځۀ + او + يا + يَ + مْ ) [ پ ، اس ، عدد] په شمار او قطار کښې پينځۀ دپاسه اويا نمبر باندې.

**پينځۀ بنا** :- ( پينځۀ + بِ + نا ) [ پ ، اس ، ص] و ـــ پنج بنا

دا پنځۀ بنا د دين دي
چې بيان ئې اوکړو ما رحمٰن بابا

**پينځۀ پنځوس** :- ( پينځۀ + پَ + نْ + ځْو + سْ ) [ پ ، اس ، عدد] پينځۀ دپاسه پنځوس ، پينځۀ کم شپېتۀ (۵۵)

**پينځۀ پنځوسم** :- ( پينځۀ + پَ + نْ + ځْو + سَ + مْ ) [ پ ، اس عدد ، مذ (مؤ ، وا: پينځۀ پنځوسمه ) ] په شمار او قطار کښې پينځۀ دپاسه پنځوس نمبر باندې.

**پينځۀ پيران** :- ( پينځۀ + پي + را + نْ ) [ پ ، اس ، مر ، مذ ، ج ] د پېښور ښار په خواوشا کښې ښخ پينځۀ پيران چې خلق ئې زيارتونو ته ورځي.

د ښار په خوا خوا کښې پينځۀ پيران دي ياره!

**پينځۀ څلوېښت** :- ( پينځۀ + څَسَ + لْ + وي + ښْ + تْ يا څَسَ + لْ + وي + خْ + تْ ) [ پ ، اس عدد ] پينځۀ دپاسه څلوېښت، پينځۀ کم پنځوس (۴۵)

**پينځۀ څلوېښتم** :- ( پينځۀ + څَس + لْ + وي + ښْ + تَ + مْ يا څَس + لْ + وې + خْ + تَ + مْ ) [ پ ، اس ، عدد ] په شمار او قطار کښې پينځۀ دپاسه څلوېښت نمبر باندې.

**پينځۀ دېرش** :- ( پينځۀ + دي + رْ + شْ ) [ پ ، اس ، عدد ] پينځۀ دپاسه دېرش ، پينځۀ کم څلوېښت. (۳۵)

**پينځۀ دېرشم** :- ( پينځۀ + دي + رْ + شَ + مْ ) [ پ ، اس ، عدد] په شمار يا قطار کښې پينځۀ دپاسه دېرش نمبر باندې.

**پينځۀ ډېيز** :- ( پينځۀ + ډَ + بي + زْ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ] (۱) چې پينځۀ ډېې ورسره تړلې وي (۲) د کنځلو په ډول هم وئيلے شي. درغل ، دوه ژبے.

**پينځۀ ډزے** :- ( پينځۀ + ډْ + زَے ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پينځۀ ډزي ] پنډ زَے ، پنځ تکيز.

**پينځۀ زره** :- ( پينځۀ + زْ + رَه ) [ پ ، اس ، عدد ] پنځوس سوه (۵۰۰۰)

**پينځۀ سوه** :- (پينځۀ +سَ + وَه ) [پ ، اس ،عدد ] پنځويشت شله (۵۰۰)

**پينځۀ شپېتم** :- ( پينځۀ + شْ + پي + تَ + مْ ) [ پ ، اس عدد ] په شمار يا قطار کښې پينځۀ دپاسه شپېتۀ نمبر باندې.

**پينځۀ شپېتۀ** :- ( پينځۀ + شْ + پي + تۀ ) [ پ ، اس ، عدد] پينځۀ دپاسه شپېتۀ ، پينځۀ کم اويا (۶۵)

**پينځۀ غنبے** :- ( پينځۀ + غَ + شَبے يا غَ + خَے ) [ اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پينځۀ غنبي (مؤ : پينځۀ غنبې ) ] و ـــ پنځ غنبے.

**پينځۀ کروړه** :- ( پينځۀ + کَ + رو + ړَه ) [ پ ، اس ، عدد] پينځۀ سوه لکه (۵۰۰۰۰۰۰۰)

**پينځۀ گوتے** :- ( پينځۀ + گُوْ + تِے ) [ پ ، اس ، ص ، مذ] و ـــ پنځ ګټه

**پينځۀ لکه** :- ( پينځۀ + لَ + کَه ) [ پ ، اس ، عدد] پينځۀ سوه زره (۵۰۰۰۰۰)

**پينځۀ نوي** :- ( پينځۀ + نَ + وِيْ ) [ پ ، اس ، عدد ] پينځۀ دپاسه نوي ، پينځۀ کم سل (۹۵)

**پينځۀ نوي يم** :- ( پينځۀ + نَ + وِيْ يَ + مْ ) [ پ ، اس ، عدد ] په شمار يا قطار کښې پينځۀ دپاسه نوي نمبر باندې.

**پينځۀ وخته** :- ( پينځۀ + وَ + خْ + تَه ) [ اس ، ص ، مذ ، ج ] (۱) شپه ورځ په پنځو وختونو کښې تقسيم شوي دي. لکه ماسخوتن ، سحر ،ماسپښين ، مازيگر او ماښام. (۱) د مانځه پينځۀ وختونه

وې چې دا گدا له خدايه نا اميد دے
پنځۀ وخت قبله گاه ددۀ خورشيد دے حميد

چې د زړۀ اخلاص ئې نۀ وي حاصل نشته
کـه پنځـۀ وختـه نمونځ واړه په مکه کا مصري خان

**ـــــ يو کېدل**:- (اص) ماښام کېدل.

**پينځۀ وختيز** :- ( پينځۀ + وَ + خْ + تيْ + زْ ) [ پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پينځۀ وختيزه ، ج : پينځۀ وختيزې ) ] (۱) پنځيز ، د پنځو وختو سره تعلق لرونکے (۲) پينځۀ وخته نمونځ کوونکے.

**پينځۀ ويشت** :- ( پينځۀ + وي + شْ + تْ ) [ پ ،اس ، عدد] پينځۀ دپاسه شل ، پينځۀ کم دېرش ، (۲۵)

**پينځۀ ويشتم** :- ( پينځۀ + وِيْ + شْ + تَ + مْ ) [ پ ، اس ، عدد] په شمار يا قطار کښې پينځۀ دپاسه شل نمبر باندې.

**پنځے** :-( پْ + نْ + ځْ + ي ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] شلومبا ونړ ، د ماستو غړکه يا کڅوړه چې کورت ترې نه جوړېږي.

**پنځېدل** :- ( پْ + نْ + ځْږي + دْ + لْ ) [ اف : پ (قاموس) مص لا ] (۱) پېدا کېدل ، تخليق کېدل (۲) کامياببدل (۳) د ترټې يا کنډُو ډکېدل.

**پنځېدل** :- ( پْ + نْ + ډْږي + دْ + لْ ) [ پ (سو) مص لا ] د مچانو بړ بړ کول ، مچان بڼېدل.

**پنځېدلے** :- ( پْ + نْ + دْږي + دْ + لَے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ وا ، ج : پنځېدلي (مؤ : پنځېدلې ) ] (۱) پېدا شوے ، تخليق شوے (۲) کامياب شوے (۳) ډک شوے.

**پنځېدنگ** :-(پْ +نْ +دْزِي+دْ +نْ + گْ) [اف :پ (قاموس) حمص]و- پنځېدنه

**پنځېدنه** :-( پْ + نْ + دْزِي + دْ + نَه ) [ اف : پ (قاموس) حمص] (۱) پنځېدۀ پنځېدنگ ، پيدا کېدنه ، تخليق کېدنه (۲) ډکېدنه

**پنځېدُونکے** :-( پْ + نْ + دْزِے + دُوْ + نْ + کَے ) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ،وا ، ج : پنځېدُونکي ( مؤ : پنځېدُونکې ) ] (۱) پېدا کېدونکے ، تخليق کېدونکے (۲) کاميابېدونکے ، (۳) ډکېدونکے

**پنځېدۀ** :- ( پْ + نْ + دْزِے + دۀ ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و- پنځېدنه

**پنځيز** :- ( پْ + نْ + دْزِيْ + زْ ) [ پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا : پنځيزه، ج: پنځيزې ) ] و ـــ پينځۀ وختيز.

**پنچ** :- ( پَ + نْ + چْ ) [ انگ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پنچُونه ] سومبه ، د غار ويستلو آله.

**پنچ** :- ( پَ +نْ + چْ ) [ ه ، اس ، مذ ، وا] پنچايت ، ثالث ، مشر

**پنچايت** :- ( پَ + نْ + چا + يَ + تْ ) [ ه ، اس ، مذ ، وا، ج: پنچايتونه] د مشرانو جرگه ، د ثالثانو ټولے.

**پنچر** :- (پَ+نْ+چَ+رْ) [پ، انګ، پنکچر، اس، مذ (مؤ، وا: پنچره، ج: پنجرې)] (۱) هغه پهيه چې باد ترې نه وتلي وي۔ (۲) د کار نه پاتې، په بد حال۔ (۳) خوار، غريب، نېستمن۔

ـــــ **کول**:- (اص) (۱) د پهيې نه باد ويستل، پنچرول (۲) خوارول، نستمن کول۔

ـــــ **کېدل**:- (اص) (۱) د پهيې نه باد وتل، پنچرېدل، (۲) خوارېدل، نېستمن کېدل۔

ـــــ **لګول**:- (اص) په پنچر شوې پهيه ټاکى لګول، پنچر شوې پهيه جوړول۔

ـــــ **لګېدل**:- (اص) په پنجر شوې پهيه ټاکى لګېدل، پنچر پهيه جوړېدل

**پنچرول** :- (پَ+نْ+چْ+رَ+وْ+لْ) [پ، مص مت] (۱) پنچر کول، د پهيې نه باد ايستل (۲) خوارول، نېستمن کول، پاتې راوستل

**پنچرووُنکے** :- (پَ+نْ+چْ+رَ+وُوْ+نْ+کَے) [پ، اس، فا ع، مذ، وا، ج: پنچروونکي (مؤ: پنچروونکې)] (۱) د پهيې نه باد ايستونکے، خوارونکے، نېستمن کوونکے۔

**پنچرېدل** :-(پَ+نْ+چَ+رې+دْ+لْ) [پ، مص لا] (۱) د پهيې نه باد وتل (۲) خوارېدل، پنچر کېدل، نېستمن کېدل، پاتې راتلل

**پنچرېدنه** :- (پَ+نْ+چْ+رې+دْ+نَه) [پ، حمص] (۱) پنچرېدهٔ، د پهيې نه باد واتهٔ (۲) خوارېدهٔ، نېستمن کېدهٔ

**پنچرېدونکے** :- (پَ+نْ+چْ+رې+دُوْ+نْ+کَے) [پ، مف، مذ، وا، ج: پنچرېدونکي (مؤ: پنچرېدونکې)] (۱) د پهيې نه باد وتونکے، پهيه د باد نه خالي کېدونکې (۲) خوارېدونکے، نېستمن کېدونکے، روستو پاتې کېدونکے۔

**پنچرېدهٔ** :- (پَ+نْ+چْ+رې+دهٔ) [پ، حمص] و ـــ پنچرېدنه۔

**پنچم** :- (پَ+نْ+چَ+مْ) [س، اس، مذ] د راګ په اُوو سُرونو کښې يو سُر۔

**پنچمي** :-(پَ+نْ+چَ+مِيْ) [س، اس، مؤ] د مياشتې پنځم تاريخ

**پنځـه** :- (پَ+نْ+څَـه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] داے، ورکوټے ديوال چې نيم ګز قدر اوچت او پلن وي۔

**پند** :- (پَ+نْ+دْ) [فا، اس، مذ، وا، ج: پندُونه] نصيحت، ښهٔ خبره، وعظ

تـهٔ چـې پـند وائـې ناصـحه و رحمـٰن تـه
کاشکې نـور کـړې هغـه کښـلي د ميثـاق

ـــــ **اخستل**:- (اص) نصيحت قبلول، خبره منل، خبرې ته غوږ کښېښول.

ـــــ **اورېدل**:- (اص) و ـــ پند اخستل۔

ـــــ **کول**:- (اص) نصيحت کول، ښهٔ خبره کول، وعظ کول۔

**پند** :- (پْ+نْ+دْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] دښمني، عداوت

**پنـد** :- (پَ+نْ+دْ) [اف: پ (قاموس) ص] (۱) پـه شـان، غونـدې، (۲) مکر، فريب، ټګي، دوکه، چل۔

ـــــ **ورته اېښودل**:- (اف) اص۔پند ورسره کول، د ټګۍ دام غوړول، چا سره فريب کول، دوکه ورکول۔

ـــــ **ورسره کول**:- (اف) اص۔و ـــ پند ورته اېښودل۔

**پند** :- (پَ+نْ+دْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: پندُونه] مزل، سفر، پن

ـــــ **کول**:- (اص) پند لنډول، مزل کول، پند وهل۔

ـــــ **لنډول**:- (اص) و ـــ پند کول۔

ـــــ **وهل**:- (اص) مزل کول، پند کول، پند لنډول۔

**پُندانه** :- (پُ+نْ+دا+نَه) [پ، اس، مؤ، وا، ج: پُندانې] د مالوچ تخم، د کربوسکې زړے۔

**پنـد رور** :- (پْ+نْ+دْ+رَ+وَ+رْ) [پ (ب، خ) اس ص، مذ (مؤ، وا: پند روره، ج: پند رورې)] شُونډه ور، هغه څوک چې شونډې ئې پړسېدلې وي۔

**پندروش** :- (پْ+نْ+دْ+رَ+وَ+شْ) [پ (ظفر، ب، خ) اس، مذ] يو قسم وابښهٔ چې ګډې بزې ئې په شوق خوري۔

**پند ګوئے** :- (پَ+نْ+دْ+ګو+ئَے) [فا، اس، فا ع، مذ] نصيحت کوونکے، نېغه لار ښيونکے، په سمه لار روانوونکے۔

بيا ما نع ناصح پند ګوئې دے
پـه بـار بـار که ډېر تکرار وي   مصري خان

**پندوک** :- (پَ+نْ+دو+کْ) [پ، اس، مذ] غوټۍ، کلى، غنچه پُنډک۔

**پنـده** :- (پْ+نْ+دهٔ) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] هغـه لويـه او سـره کُولمه چې د بولو په ځاے بهر ته را ووزي۔

**پندې** :- (پْ+نْ+دْ+يَى) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] بشکه، پنډۍ، يو خود رو بوټے۔

**پنـډ** :- (پْ+نْ+ډْ) [اف: پ (قاموس) اس، مـذ] (۱) غـټ، مضـبوط (۲) څيړ، لواړ، ټينګ۔

که غټ که وړکه پنډ نرے وي
ستا د جمال زرې هر شے وے   عيسىٰ مشواني

**پنډ** :- (پْ+نْ+ډْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: پنډونه] پنډبکر، اورټک، چقماق۔

نهٔ په پنډ لوېږي له هر کاڼي بڅري
دے سوخته سـره بکر لري سودا   خوشحال خان

**پنډ** :- (پْ+نْ+ډْ) [پ، اس، مذ، وا (مؤ، وا: پنډه، ج: پنډې)] راغونډ، جمع، يو ځاے، ګرد۔

زهٔ رحمـٰن د هغـه حسـن ثنـا خـوان يـم
چـې جرګـه د عاشـقانو وي پـرې پنـډه
دا نـا اهـل همـدمان دي نـهٔ پـوهېږم
که مچۍ د رحمـٰن پنډې پـه ګوګـل دي

**پنډ** :- (پَ+نْ+ډْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: پنډونه (مؤ، وا: پنډه، ج: پنډې)] بوج، بار، ګټے، پنډه۔

د چا تاج زرين په سر تر ملا خنجر وي
د چـا پنـډ پـه سر پـه ملا ټومبلے لور   رحمٰن بابا

ـــــ **اچول**:- (اص) پنډ د سر نه کوزول۔

ـــــ **اخستل**:- (اص) (۱) بوج پـه سر کول، د ګټې اوچتـول، پېټے پـه سر اخستـل، پنډ اوچتول، پنډ په سرول (۲) ذمه واري اخستل۔

ـــــ **اوچتول**:- (اص) و ـــ پنډ اخستل۔

ـــــ **په سرول**:- (اص) و ـــ پنډ اخستل۔

ـــــ **تړل**:- (اص) څهٔ څيز يو ځاے غونډول، او بار يا ګټے ترې جوړول

**پنډ پنډ** :- (اص) ډېرې ډېرې، دلۍ دلۍ، ډېر زيات۔

**پنـډ** :- (پَ+نْ+ډْ) [اف: پ (قـاموس) اس، مـذ، وا، ج: پنډُوونـه] درياب يا نهر ته تړلے لوے بند۔

ـــــ **اچول**:- (اف) اص۔درياب يا نهر ته بند تړل، پنډ تړل۔

ـــــ **تړل**:- (اف) اص۔و ـــ پنډ اچول۔

**پُنډ** :- (پُ+نْ+ډْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] ورکوټے چاؤد، نـرے سورے، کُوساټے، کُوسکے، کُوسکے۔

ـــــ **لرل**:- (اف) اص۔نرے سُورے يا ورکوټے چاؤد لرل۔

**پنډال** :- (پَ+نْ+ډا+لْ) [ه، اس، مذ، وا، ج: پنډالونه] د جلسې يا غونډې دپاره جوړ کړے ځاے چې اکثر شاميانې پکښې لګېدلې وي

او دونکاچه پکښې جوړه وي. جلسه گاه ،

**پنډاؤ**:- (پ + نْ + ډاؤ) [ پ ، ص ] راغونډه ، پنډه ، يو ځاے شوے گړد

پـرې پنـډاؤ دے د ځوانانو

څۀ دربار دے ستا د شونډو خوشحال خان

**پنډاوو** :- (پ + نْ + ډا + وُوْ) [ پ (سو) اس ، مذ ] هغه چرگ چې بڼې نۀ لري ، لغړ چرگ.

**پنـډاور** :- (پ + نْ + ډا + وْ + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ ، وا: پنـډاوره ،ج : پنـډاورې) ] هغـه چرگـوړے چې مـرداري پخـې ئـې غورزولې وي.

**پنډ بکر** :- (پْ + نْ + ډ + بَ + کَ + رْ) [پ ، اس ، مذ] اورټک ، پنډه ، چقماق.

**پنډت** :- (پْ + نْ + ډْ + تْ) [ س ، اس ، مذ ، وا ، ج : پنډتان ، پنډتون (مؤ ، وا: پنډتـه ،ج : پنـډتې) ] (۱) بـامبڼ ، بـرهمن ، د هنـدوانو مـذهبي عالم (۲) غټ ، ډډُو ، پړسېدلے (۳) سست ، بېکاره ، تيارخور.

**پنـډتوب** :- (پْ + نْ + ډْ + تـو + بْ) [ اف : پ (قـاموس) ص ] پنـډتيا ، پنډوالے ، مضبوطي ، غټوالے ، کلکتوب.

**پنډتون** :- (پْ + نْ + ډْ + تُو + نْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پنډغالے ، شپول ، د څاروو د يو ځاے کولو او ايسارولو ځاے.

**پنډتـه** :- (پَ + نْ + ډْ + تـه) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پنـډتې] ټوقه ، وشته ، مسخره

**پنډتيا** :- (پَ + نْ + ډْ + تْ + يا) [ اف : پ (قاموس) اص ، مؤ ] و ــ پنډتوب

**پنډزے** :- (پ + نْ + ډَ + زَے) [ پ (سو) اس ، مذ ، وا ، ج : پنډزي]او ــــ پنځ ټکيز

**پنـډ غالے**:- (پَ + نْ + ډْ + غـا + لَے) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پنـډغالي] (۱) شپول ، (۲) هغه ځاے چې څاروي پکښې يو ځاے کولے شي

**پُنډک** :- (پُ + نْ + ډَ + کْ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مذ] و ــ پنډوک

**پنډکۍ** :- (پُ + نْ + ډ + کَ + يَی) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هغه پټۍ چې مرهم پرې لگېدلے وي او په زخم لگولے شي.

**پُنډکۍ** :- (پُ + نْ + ډ + کَ + يَی) [ پ (گن) اس ، مؤ] په کپړه کښې تړلې مېده دارو يا رنگ وغېره چې په څۀ څيز دُوړولے شي.

**پنډگر** :- (پَ + نْ + ډْ + گَ + رْ) [اف :پ (قاموس)اس، فاع ، مذ ، (مؤ ، وا: پنډگره ، ج : پنډگرې) ] د آتشبازۍ او اورټک سامان جوړوونکے.

**پنـډل** :- (پَ + نْ +ډَ + لْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پنډلُونـه ] (۱) پوله، بند ، بريد ، لټ (۲) پيکته ، سنگر ، مورچه

**پنډنگ** :- (پ + نْ + ډِ + نْ + گْ) [انگ، اس، مذ] فېصلې ته ايسار زېر غور

**پنډو** :- (پَ + نْ + ډو) [اف :پ (قاموس)اس، مؤ] گڼه گونه، مجمع، غُونډه

ــــــ **کول**:- (اف) اص، گڼه گونه جوړول ، غونډه جوړول ، زيات خلق جمع کول يا يو ځاے کول.

ــــــ **کېدل**:- (اف) اص) گڼه گونه جوړېدل ، غونډه جوړېدل ، زيات خلق يو ځاے کېدل.

**پنډ والے** :- (پْ + نْ + ډ+ وا + لَے) [ اف :پ (قاموس) اس ، مذ] و- پنډ توب

**پنـډور** :- (پْ +نْ + ډَ + وَ + رْ) [ پ ، اس ، ص ، مـذ (مـؤ ، وا: پنـډوره ج : پنډورې)] (۱) پنډۍ ور ، غټ پنډے ، هغه څوک چې پنډۍ ئې غټې وي.(۲) غټ څورب.

**پنډوره** :- (پَ + نْ + ډو + رَه) [ پ (ظرف) اس ، مؤ ، وا ، ج : پنډورې] کندو ، ايکونه ، ترټه.

**پنـــډوس** :- (پْ + نْ + ډو + سْ) [ پ ، اس ، مـــذ ، وا ، ج : پنډوســـکي] غُنډوس ، تپوسے ، گېند ، فټبال ، پنډوسکه.

ــــــ **کول**:- (اص) د فټبال لوبه کول.

**پنـــډُوس** :- (پَ + نْ + ډُو + سْ) [ اف : پ (قـــاموس) اس ، مـــذ (مـــؤ ، وا: پنډوسه ، ج : پنډوسې) ] غټ ، څورب ، سست ، ناړامه ، ناراست.

**پنډوســکه** :- (پَ + نْ + ډو + سْ + کَـے) [ اف : پ (قـــاموس) اس ، مـــؤ ] غُنډوس ، تپوسے ، فټبال.

**پنډوســـکے** :- (پَ + نْ + ډو + سْ + کَـے) [ پ (ســـو) اس ، مـــذ ، وا ، ج : پنډوسکي ] ورکوټے پنډه.

**پنډوکي** :- (پَ + نْ + ډُوْ + کِيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) ورکوټے پنډه ، پنډوکے ، (۲) ورکوټے خُورجين يا کڅوړه.

**پنډول** :- (پْ + نْ + ډْ + وْ + لْ) [ پ ، مص مت ] راغونډول ، په يو ځاے کنبېنول ، پنډ کول.

**پُنډول** :- (پُ + نْ + ډَ + وْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] (۱) غټول ، څربول ، (۲) مال ، څاروي ، ددې دپاره يو ځاے کول.

**پنډولگر** :- (پْ + نْ + ډو + لْ + گَ + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ (مؤ ، وا: پنډولگره ، ج : پنډولگرې) ] په پټې کښې په مزدورۍ مالوچ يا کربوسکې راغونډوونکے.

**پنډولي** :- (پْ + نْ + ډو + لِيْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ] د مېـوې يـا مالوچو راټولولو کار.

**پنډولۍ** :- (پ + نْ + ډو + ل + يَی) [ اف : پ (قـاموس) اس ،مـؤ] گـونج ، گوبلۍ ، د مېوې يا سبزۍ يا کربوسکې د راټولولو دپاره د څادر نه تړلې کڅوړه.

**پنډولے** :- (پْ + نْ + ډو + لَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د مېوې يا د مالوچو د راگرځولو د مزدورۍ په صله کښې ورکړے شوې حصه.

**پنډُون** :- (پَ + نْ + ډُوْ + نْ) [اف ، پ (قـاموس) اس ، مـذ ] د څـناورو يـو ځاے ته راگرځول.

**پنډونگ** :- (پْ +نْ + ډَ + وْ + نْ + گْ) [اف:پ (قاموس) حمص ] و- پنډونه.

**پُنډونگ** :- (پُ +نْ +ډَ + وْ + نْ +گْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و -پُنډونه.

**پنډونه** :- (پْ + نْ + ډَ + وْ + نه) [ پ ، حمص] راغونډونه ، مال څاروي يـو ځاے کونه.

**پُنډونه** :- (پُ + نْ + ډَ + وْ + نَـه) [ اف : پ (قـاموس) حمص] (۱) پنډونگ ، غټونه ، څربونه ، (۲) مال ددمې دپاره په يو ځاے کښې جمع کونه.

**پنـــډوونکے** :- (پْ + نْ + ډَ + وُوْ + نْ + کَـے) [ پ ، اس فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: پنډوونکي (مؤ : پنډوونکې) ] راغونډوونکے ، مال يا څاروي را يـو ځاے کوونکے.

**پُنـــډوونکے** :- (پُ + نْ + ډَ + وُوْ + نْ + کَـے) [ اف : پ (قـاموس) اس ، فـا ع ، مـــذ ، وا ، ج : پنـــډوونکي (مـــؤ : پُنـــډوونکې) ] (۱) غټـــوونکے ، څربوونکے ، پړسوُونکے (۲) مال يا څاروي د دمې دپاره رايـو ځـاے کوونکے.

**پنـــډه** :- (پْ + نْ + ډَه) [ اف : پ (قـــاموس) ص ، مـــؤ ، وا ، ج : پنـــډې ] (۱) ډډُون ، تکليف ، پړسوب ، (۲) زياته گرمه اوسپنه (۳) د څاورو يو بالټۍ قدرې.

**پنډه** :- (پْ + نْ + ډَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پنډې ] پنډه ، پلنډ ، لوبه غُوټه ، څۀ تړلے شوے څيز.

**پنـــډه** :- (پَ + نْ + ډَه) [ اف : پ (قـــاموس) اس ، مـــؤ ، وا ، ج : پنـــډې] (۱) پنډه ، پلنډه ، (۲) خېرات ، صدقه.

**پنډۍ** :- (پْ + نْ + ډْ + يَی) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د نيزې ، بلې يا سونگې څوکه.

**پنډۍ**:- (پْ + نْ + ډَ + يَـى) [ پ ، ه : پنـډلي ، اس ، مـؤ] پرکـی ، سـپينه ، پسته ، د زنگون او ښنګرۍ په مينځ کښې د پښې حصه.

تهٔ په پالنگ پرېوځې زهٔ حېران په فکر لاړ شم

پنـډۍ دې دي د گلو کــه دانـــه پټه په پانې خوشحال خان

**پنډۍ** :- (پ + نْ + ډَ + يَـى) [اس ، معرفه ، مـؤ] راولپنـډۍ ، د پاکسـتان يو ښار چې ورسره نژدې اسلام اباد پروت دے.

**پُنـډۍ** :- (پُ + نْ + ډَ + يَـى) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] (۱) پنـډۍ سپينه ، پسته (۲) شين رنگے بوټے چې سپين گل لري او خلک ئې خوراک دپاره پخوي (۳) د لرگي صندوق.

**پُنـډۍ تـړ** :- (پُ + نْ + ډَ + يَـى + تَ + ړْ) [اف : پ (قـاموس) ] پـاپيچ ، د پښو ترلو پټۍ چې فوځيان يا عکسر ئې استعمالوي.

**پنډېدل** :- (پْ + نْ + ډې + دْ + لْ) [ پ ، مص لا] جمع کېدل ، غونډېدل ، مال يو ځاے کېدل ، کښېناستل.

**پُنډېـدل** :- (پٌ + نْ + ډې + دْ + لْ) [ اف : پ (قـاموس) مـص لا] (۱) د مـال يو ځاے جمع کېدل (۲) څربېدل ، ډډېدل ، غټېدل ، پړسېدل

**پُنډېدنگ** :- (پُ + نْ +ډې+دْ +نْ +گْ) [اف :پ (قاموس) حمص ] و - پُنډېدنه

**پنډېدنـه** :- (پْ + نْ + ډې +دْ +نَـه) [ پ ، حمص] پنډېـدهٔ ، جمـع کېدنـه ، غونډېدنه ، د مال يو ځائې کېدنه ، کښېناستنه.

**پُنډېدنه** :- (پُ + نْ + ډې + دْ + نَه) [اف : پ (قـاموس) حمص] (۱) پُنډېدنگ ، پُنډېدهٔ ، د مال يـو ځـاے کښې جمع کېدنه ، (۲) غټېدنه ، پړسېدنه ، ډډېدنه ، څربېدنه.

**پنډېــدونکے** :- (پْ + نْ + ډې + دُو + نْ + کَـے) [ پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: پنډېدونکي (مؤ : پنډېدونکې) ] غونډېدونکے ، جمع کېدونکے ، مال يو ځاے کېدونکے ، کښېناستونکے.

**پُنډېدونکے** :- (پُ + نْ + ډې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پنډېـدونکي) ] (۱) مـال يـو ځـاے کښې جمـع کېـدونکے (۲) غټېدونکے ، پړسېدونکے ، څربېدونکے ، ډډېدونکے.

**پنډېدهٔ** :- (پْ + نْ + ډې + دهٔ) [ پ ، حمص] و ـــ پنډېدنه

**پُنډېدهٔ** :-(پُ + نْ + ډې + دهٔ) [اف : پ (قاموس) حمص ] و ـ پنډېدنه

**پنډېرک** :- (پْ + نْ + ډې + رَ + کْ) [ پ ، اس ، مـذ] (۱) پنيـرک ، يـو قسم ساگ ، کارگه ، (۲) اس معرفه.په چارسده تحصيل کښې يو کلے.

**پنــډېرے** :- (پْ + نْ + ډے + رَے) [ پ ، اس ، مــذ ، وا ، ج : پنــډيري] (۱) پوزے ، انډېرے (۲) د مزرو نه جوړه ترټه ، پرېړۍ

**پنډېور** :- (پْ + نْ + ډې + وَ + رْ) [ پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا : پنډېوره ، ج : پنډېورې) ] پنډيا ور ، غټ پنډے ، څورب.

**پُنډي ورجې** :- (پُ + نْ + ډِيْ + وْ + رْ + جِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ] ډډې وريژې ، پړسېدلې وريژې.

**پنزېب** :- (پْ + نْ + زې + بْ) [ پ (گن) فا : پازېب ، ه: پايل ، اس ، مذ ، وا ، ج : پنزېبونه ] پايلې ، د پښو کالې.

**پنزېـدل** :- (پَ + نْ + زې + دْ + لْ) [ پ (سو) مـص لا] پـه څـهٔ څيـز زيـات مېږې راجمع کېدل.

**پنس** :- (پِ + نْ + سْ) [ انگ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پنسُونه ] يوه انگرېزي سکه چې د زړې پاکستانۍ يوې انې برابره ده.

**پُنس** :- (پُ+نْ+ سْ) [اف :پ (قاموس)اس، عدد ، مذ ] پينځهٔ سوه پونسو.

**پنسارۍ** :- (پَ +نْ + سا + رَ + يَى) [ پ (مر) اس ، مـؤ] راشبېل ، د غلې او بُوس بېلولو پينځهٔ غابنے.

**پنساري** :- (پَـ+ نْ+سا + رِيْ) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : پنساريان ] و- پساري

**پنسرے** :- (پْ + نْ + سَ + رْے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و - پلن سرے.

**پنسل** :- (پِ + نْ + سَ + لْ) [ انگ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پنسلونه ، پنسـلينه ، پنسلان ] د لرگي او سکې نه جوړ د ليکلو قلم ، پنسن

**پنسلين** :- (پِ + نْ + سِ + لـيْ + نْ) [ انـگ ، اس ، مـذ] يـوه دوائـي چې انجکشنونه او ملهم ئې ډېر مشهور دي.

**پنســـن** :- (پِ + نْ + سَ + نْ) [ پ(عـــا) اس، مــذ ، وا ، ج : پنســـونه ، پنسنينه] و ـــــ پنسل.

**پنسن** :- (پِ + نْ + سَ + نْ) [ پ (عـا) انـگ ، پنشـن ، اس ، مـذ ، وا ، ج: پنسُونه ، پنسنينه ] وظيفه ، هغـه رقم چې د نوکرۍ د مقرر ميعـاد پوره کولو نه پس ئې حکومت مياشت په مياشت خپـل زوړ مـلازم تـه ورکوي.

ـــــ **اخستل**:- (اص) (۱) په پنشن کېدل ، پنشن حاصلول ، پنشن پوره کـول (۲) د خزانې نه د پنشـن رقـم اخسـتل (۳) پـه ارام کښېناسـتل.د دنيـا په کار غم غرض نهٔ لرل.

ـــــ **خوړل**:- (اص) (۱) پنشن حاصلول ، (۲) تياره خوړل ، څهٔ کـار روزگـار نهٔ کـول (۳) د مقررې ذمـه وارۍ نهٔ پـوره کـول او مـزدوري يـا تنخـواه اخستل.

**پنســن خـور** :- (پنســن + خـو + رْ) [ پ ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : پنســن خواران (مؤ : وا : پنسن خوره ، ج: پنسن خورې) ] (۱) پنشـن خـور ، پنسني ، پنسن ياب ، وظيفه خور (۲) تيار خور ، بېکاره

**پنسـني** :- (پِ +نْ + سَ + نـيْ) [ پ (عـا) اس ، مـذ ، وا ، ج : پنسـنيان ، پنسنيوان ] و ـــ پنسن خور.

**پنسـن يـاب** :- (پنسـن + يـا + بْ) [ پ ، اس ، ص ، مـذ (مـؤ ، وا : پنسـن يابه ، ج : پنسن يابې) ] و ـــ پنسن خور.

**پنشـــن** :- (پِ + نْ + شَ + نْ) [ انـــگ ، اس ، مــذ ، وا ، ج : پنشـــنونه ، پنشنينه ] پنسن ، وظيفه.

**پنشــن خــور** :- (پنشــن + خــو + رْ) [ پ ،اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : پنشـن خـواران (مـؤ ، وا: پنشـن خـوره ، ج : پنشـن خـوارې ] (۱) پنشـني ، پنشنر ، پنشن ياب ، پنسني ، پنسن خور، پنسن يـاب ، وظيفـه خـور (۲) تيارخور ، بېکاره.

**پنشنر** :- (پِ +نْ + شْ + نَ + رْ) [ انگ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پنشنران ] و ـــــ پنشن خور.

**پنشـــني** :- (پِ + نْ + شَ + نــيْ) [ پ ، اس ، مــذ ، وا ، ج : پنشـــنيان ، پنشنيون ] و ـــــ پنشن خور.

**پنشن ياب** :- (پنشن + يا + بْ) [ پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پنشـن يابـه ، ج : پنشن يابې) ] و ـــ پنشن خور.

**پنگ** :- (پْ + نْ + گْ) [ پ ، اس ، صـو ] بنـگ ، نـرے اواز ، دا ټکـے اکثـر له چنگ سره يو ځاے استعمالېږي .لکه ،، چرتـه چنـگ پنـگ مې وانهٔ ورېدو ".

**پُنگلـى** :- (پُ + نْ + گْ + لْ + يَـى) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] سُـرنا ترُترۍ.

**پـنگن** :- (پَ + نْ + گَ + نْ) [ پ (ب، خ) ص ، مـذ ، (مـؤ ، وا: پنگنـه، ج: پنگنې) ] بې عزته ، د پونۍ نه ويستلے.

**پنگـول** :- (پْ + نْ + گْ + وْ + لْ) [ اف : پ (قـاموس) مـص مـت] بنگـول، سُرنا وغېره غږول.

**پنگونه** :- (پْ + نْ + گْ + وْ + نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص] بنگونه سُرنا وغېره غږونه.

**پنګوُونکے** :- (پْ + نْ + ګَ + وُوْ + نْ+ کَے ) [اف : پ (قاموس) اس فا ع مذ ، وا ، ج : پنګوونکي (مؤ : پنګوونکې ) ] سُرناچي ، د سُرنا وغېره ساز غږوونکے ، سُرناوُونے۔

**پنګه** :- (پْ + نْ + ګَه ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هغه نهر چې په اوارو زمکو او ځنګلو کښې ډېر ژور تلے وي۔

**پنګه** :- (پَ +نْ + ګَه ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پنګې ] پانګه ، سرمایه ، ذخیره۔

ـــــ **اېښودل**:- (اص) سرمایه اېښول ، ذخیره ایښول ، زېرمه جمع کول

ـــــ **لرل**:- (اص) سرمایه لرل ، ذخیره لرل ، جمع لرل۔

**پنګه** :- (پُ + نْ + ګَه ) [اف : پ (قاموس ) اس ، مؤ] یوه غونډه مېوه چې خوراکي مغز لري او پوستکے ئې سخت او تور وي۔ پُنګۍ

بې له دې چې موحد مؤمن مخلص یم
د عمل پنګه مې هېڅ نشته مفلس یم حمید

**پنګه وال** :- (پنګه + وا + لْ ) [پ ، اس ، ص ،مذ (مؤ ، وا ، : پنګه واله ، ج : پنګه والې ) ] سرمایه دار ، د سرمایې خاوند ، د پنګې څښتن۔

**پنګه ور** :- (پنګه + وَ + رْ ) [پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پنګه وره ، ج: پنګه ورې ) ] (۱) خزانچي ، (۲) د مورۍ خاوند ، شتمن، دولتمند ۔

کنـد کچـــکول د قناعت کښې پنګه ور دے
مرګ ئې خوښ خو د احسان پېټے پرې غر دے طائر

**پُنګۍ** :- (پُ+ نْ + ګْ + یَۍ ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) پُنګه، یوه مېوه ، (۲) د سُرنا شپېلۍ یا نچه (۳) د دروازې چُوڼ (۴) د ونجاري سامان۔

**پنګے** :- (پْ + نْ + ګَے ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پرېز ، منجله ، د زخم پټۍ

**پنه** :- (پْ + نَه ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پنې ] د کاغذ یوه تخته

**پنهاني** :- (پِ + نْ+ ها + نِيْ ) [فا ، ص ] پټ ، پنهم

وائي زۀ ئې ورک کړم دا بدرنګ اقرب لوے مه شه
کشـــکے کـــه بشـره ئې شي پـــــه خـــاورو پنهاني مصري خان

**پنهم** :- (پِ + نْ + هَ + مْ ) [فا ، ص ] پټ ، پنهان۔

هسې پټ لرم دا زېر رخسار لـــه خلقو
لکه زر چې څوک له خلقو پټ پنهم ږدي رحمٰن بابا

**پنۍ** :- (پَ + نَ + یَۍ ) [پ (ظفر) اس ، مؤ] یو قسم خوشبوداره واښۀ

**پنۍ** :- (پَ + نَ + یْ ) [پ ، (سو) اس ، مؤ] کناري ، هغه زري سپینه پټۍ چې په لُوپټه باندې د ستارو په ډول لګولے شي۔

ـــــ **کول**:- (سو) اص ، کناري لګول۔

**پني** :- (پَ + نِيْ ) [پ ، اس ، مذ] د پښتنو د یو قبیلې نوم۔

**پِنِّي** :- (پِ + نْ + نِيْ ) [انګ ، اس ، مؤ ] پول ، پېسه

**پنې** :- (پْ + نې) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د زنانو د طله دار پېزار اړخونه یا ورشکي۔

**پنیاله** :-(پَ + نْ + یا + لـه ) [پ ، اس معر ،مؤ ] د ډېره اسماعیل خان په ضلع کښې د یو کلي نوم چې کجورې او امونه ئې مشهور دي

**پنیر**:-(پَ + نِيْ + رْ ) [فا ، اس ، مذ] د تازه پیو نه جوړ کړې کرُوت شان ، خوراک

**پنیرک** :- (پَ + نې + رَ + کْ ) [پ ، اس ، مذ] و ــــ پنډېرک ۔

**پنیز** :- (پَ + نِيْ + زْ ) [پ (وز) اس ، مذ] فانوس ، قندیل۔

**پڼ** :- (پْ + ڼْ ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] ډک ، پُر۔

**پُڼاکي** :- (پُ + نْ + ړا + کِيْ ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د ځناور ټپونه ، یا ورتل پرېوتل۔

ـــــ **وهل**:- (اف ) اص۔ د ځناورو ورتل پرېوتل۔

**پڼاؤ** :- (پَ + نْ+ ړا + ؤ ) [اف : پ (قاموس) اس ] پناه غوښتنه۔

**پڼسے** :- (پَ + ڼْ +سَے ) [پ (ب، خ)اس، مذ ، وا ،ج : پڼسي ] سپڼسے ، تار۔

د ژونـــــدون پېـــوند تړلے په یوۀ اومه پڼسۍ دے
د جهان غمونه پرېږده د نور به څۀ ژاړې ځان ژاړه خوشحال خان

**پـڼ کېدل** :- (پْ + ڼ + کې + دْ + لْ ) [پ (ب، خ ) مص لا] چڼ کېدل ، پړ کېدل ، برېښېدل۔

**پُڼل** :- (پُ + ڼَ + لْ ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] زڼي ، زړي ، مغز، بچي۔

**پڼول** :- (پْ + ڼُ+ وْ + لْ ) [اف : پ (قاموس) مص مت ] پڼه کول ، اوبۀ کول۔

**پُڼول** :- (پُ + ڼُ + وْ + لْ ) [اف : پ (قاموس) مص مت ] پوڼول ، زیړې سپینول ، د زړو نه مغز را ویستل۔

**پڼه** :- (پْ + ڼَه ) [پ (ګن) اس ، مؤ] د چینۍ او اوبو نه جوړ شربت۔

**پڼه** :- (پْ + ڼَه ) [پ (ب ، خ ) اس ، مؤ ] خړوب ، اوبۀ شوے۔

ـــــ **کول**:- (ب ، خ ) اص۔ خړوبول ، اوبۀ کول ، اوبۀ ورکول۔

ـــــ **کېدل**:- (ب ، خ ) اص ، خړوبېدل ، اوبۀ کېدل۔

**پڼه** :- (پَ + ڼَه ) [اف : پ (قاموس) ص ] راچاپېره ، جمع شوي۔

**پرپڼه کېدل** :- (اف ) اص ۔چا لوے مشر سړي سره جمع کېدل ۔په چا لوے سړي پنډېدل ،لکه ''اسلم او سلیم دوي پر خپل کاکا پڼه دي''

**پڼه** :- (پَ + ڼَه ) [پ (سو) اس ، مؤ] چړکاؤ ، ترمکا ، ټرمکا ، پُوني

ـــــ **کول**:- (سو ) اص ۔پُوني کول ، چړکاؤ کول ، ترمکا کول ، ټرمکا کول ، پوژوهل۔

**پڼه** :- (پَ + ڼَه ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پڼې ] پېزار ، کپۍ ، کوښه

ښې پڼې مهین دستار به دې شي پاتې
له دنیـــا بـــه ځې پښې ابله هم سر تور معزالله خان

**پڼې سمول** :- (اص ) (۱) چاته پڼې برابرول (۲) د چا تابعداري کول ، د چا په وړاندې لاس په نامه اودرېدل۔

**پڼې شلول** :- (اص ) (۱) پڼې خیرې کول (۲) پـه څۀ کـار پسې منډې تـړړې وهل ، ځان ستړے کول۔

**د پڼو پـه ځاے** :- (اص ) (۱) پـه هغـه ځـاے چې چرتـه پڼې ایسـتے شي ۔ (۲) کښته ، لاندې ، د نوکر په ځاے۔

**د هـر چـا پـه سـر پڼې شـلول** :- (اص ) (۱) پـه پڼو وهـل ټکـول ، ښـۀ ډبـول (۲) شرمول ، سپکول

**پڼه وڼه** :- (پَ + ڼَه + وَ + ڼه ) [پ ، ص ] طاقت او توانائي۔

**پُو** :- (پُوْ ) [پ ، اس ، صو ، مذ] پُف ، چُف ، دم ، پُوکے

بې اختیاره مې و ځـان وته راکاږي
نۀ پوهېږم څۀ افسون ئې په ما پُو کړ معزالله خان

ـــــ **کول**:- (اص ) چُف کول ، دم کول۔

ـــــ **کېدل**:- (اص ) چُف کېدل ، دم کېدل۔

**پُوا** :- (پُوْ ) [پ ، اس ، مذ] د ماشومانو په ژبه اور ته وائي۔

ـــــ **کېدل**:- (اص ) سوځېدل ، سولے کېدل۔

**پو** :- (پو ) [پ ، ص ] پوهه ، پوه ، پوئے ، اوښیار ۔

**پو** :- (پو) [پ ، ه : پوه ، پوس ، اس ، مذ ] د هندي میاشتې نوم چې په مګر یا منګر پسې راځي ، متل : پو ما ئې پرې باسي پګڼ پرې بدنام شي۔

**پـوار** :- (پُ + وا + رْ ) [پ (ګن) ه: پُهوار ، اس ، مذ] نرے باران ، نري څاڅکي ، شمال ، پُوني۔

**پُـواره** :- (پُ + وا + رَه ) [پ ، ع : فواره ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پوارې ] هغه

لونبړې چې په ګلونو پرې اوبۀ چڼ کاؤ کولې شي.

**پُواړ** :- (پ + وا + ړْ) [ پ ، ه : پهوهړ ، ص ، مذ (مؤ ، وا ، : پواړه ، ج : پواړي ) ] (۱) ګنده ، مېلا ، سخا ، ناولې ،خيرن ، خيچن (۲) بې هُنره ، بې سليقې ، هغه څوک چې چل نۀ ورځي.

**پُو او چُو** :- (پُوْ + او + چُوْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] دم چُف ،

**پوائنټ**:- (پْ + وا + ئي + نْ + ټْ) [ انګ ، ا ، مذ ، وا ، ج : پوائنټونه ] (۱) نکته ، د مطلب خبره (۲) د ګټې نمبر يا وار ، (۳) نقطه.

**ــــ آف آرډر**:- (اص) په اسمبلۍ يا غونډۀ کښې د تقرير په دوران کښې د چا سوال يا نکته اوچتول.

**پوپ** :- (پو + پْ) [ انګ ، اس ، مذ ] د رومن کيتهولک فرقې لوے پادري.

**پوپ تنې** :- (پُوْ + پْ + تَ + نې) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پُوپ تنې ] مُلا چرګک ، ګُډې چرګ ، هُد هُد.

**پُوپک** :- (پُوْ + پَ + کْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پوپکان] بادي ټوپک ، ائرګن ، هغه ټوپک چې د باد په زور چره پرې ويشتلې شي.

**پوپکه** :- (پو + پَ + که) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پوپکې] تناکه ، پړسوب ، پُولۍ.

**پوپل** :- (پو + پَ + لْ) [ پ ، اس ، مذ (مؤ ، وا : پوپله ، ج : پوپلې) ] (۱) د پښتنو د يوې قبيلې نوم چې د ابداليانو د خېل نه حسابېږي (۲) د يو ګل نوم.

**پوپل خېل** :- (پوپل + خې + لْ) [ پ ،اس ، مذ] د يوسفزو د يو خېل په توره د سېد جوکا پوپل خېل مقابل ؤ ، (تواريخ رحمت خان)

**پوپلزے** :- (پوپل + زَ + ے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پوپلزي ، (مؤ : پوپلزۍ ) ] د پوپل د قبيلې نه.

**پُوپنا** :- (پُوْ + پَ + نا) [ پ ، ص ] فُوفنا ، تباه برباد ، نيشت نابود

اوس ئې نخښې ليدے نۀ شي

دې جهان کـــړل پُـــوپـــنـــا خوشحال

**ــــ کول**:- (اص) فُوفنا کول ، تباه برباد کول ، نيشت نابود کول

**ــــ کېدل**:- (اص) فوفنا کېدل ، تباه برباد کېدل ، نيشت نابود کېدل

**پُو پو** :- (پُوْ + پو) [ پ ، اس ، مؤ ] ترور ، د پلار خور ، مشرې ښځې ته د عزت په ډول وئيلے شي. اګو.

**پُـوپي** :- (پُـوْ + پـي) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پُـوپي] (۱) ښاپيرک ، ماشام چکالے ، ټيټارے ، اسمان ځکالے ، ښاپيير کرکے (۲) ټاټکه ، يو قسم مشهور وابښۀ (۳) د بائکړ يا بزې ګُل چې په رنګ سپين وي ، رس ئې خوږ وي او چُوپلے شي.

د چا پخره د مېو جام شي

د چا په بخره پُوپي پمنې خوشحال

**پوت** :- (پو + تْ) [ اف : پ (قاموس) ه : پرت ، اس ، مذ ، وا] د لمڅي يا نمدې د کاغذ په شان نرے پټ.

**پُوت** :- (پُوْ + تْ) [ س ، اس ، مذ ] زوے ، بچے.

چې د پلار په بدګوئ سر شي پوت خوشحال

**پوتړه** :- (پو + تْ + ړَه) [ پ (ګن) اس، مؤ ، وا ، ج : پوتړې ] د ماشوم د بولو د صفا کولو رنجه ، ټوکړې يا چيتړه.

**پوتکۍ** :- (پو + تَ + کَ + يَۍ) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ] د زنانۀ د غاړې بندۍ يا غاړکۍ.

**پوتل** :- (پو +تَ +لْ) [ اف :پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : پوتلُونه] منه سبو.

**پوتلۍ** :- (پو + تَ + لَ + يَۍ) [ اف : پ (قاموس) س ، مؤ] د جينکو هغه غټه شان ګوډۍ چې په تار ئې ګډ وي. ميرغواړه ، ګُوډچکه

**پُوته** :- (پُوْ + تَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د غوا د څرمنې مينځنۍ حصه.

**پوتۍ** :- (پو + تَ + يَۍ) [ پ ،ه: پوتهی ، اس ، مؤ] د حساب کتاب د ياداشت کاپۍ يا کتاب.

**پُوټ** :- (پُو + ټْ) [ پ ، اس ، مذ] (۱) غم ، مصيبت ، تکليف (۲)مجلس

د اخــلاص مـزه به نۀ مومې له پوټه

آه افسس به وي ور پاتې له دې لوټه حميد

**ــــ کول**:- (اص) (۱) غم کول ، فکر کول (۲) مجلس کول

**ــــ کېدل**:- (اص) (۱) غم کېدل ، فکرکېدل(۲) مجلس کېدل

**پوټ** :- (پو + ټْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پوټُونه] (۱) پټ ، پوټکے ، پټهړے ، پوستکے (۲) څرمن ، ژوَن

**ــــ اړول**:- (اص) (۱) پټ اړول ، صفا کول(۲) څرمن ويستل.

**پوټاس** :- (پو + ټا + سْ) [ پ ، انګ : پوټاش ، اس ، مذ] يوه اور اخستونکې ماده ، دارو ، بارود.

**پوټاشيم پرمنګنيټ** :- (پو + ټا + شْ + يَ + مْ + پَ + رْ + مَ + نْ + ګْ + نې + ټْ) [ انګ ، اس ، مذ] يوه سره دانې داره دوائي چې د جراثيمو د مړولو دپاره استعمالېږي.

**پُوټک** :- (پُوْ + ټَ +کْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] غُنډ ګرد شان بوټے چې په سخته زمکه کښې راټوکېږي.

**پوټکے** :- (پو + ټَ + کَے) [ پ ،اس ، مذ ، وا ، ج : پوټکي ] پوستکے څرمن ، ژوَن.

**ــــ اړول**:- (اص) پوټکے ايستل ، زيات وهل ډبول.

**ــــ ايستل**:- (اص) و ــــ پوټکے اړول.

**د پوټکي کول** :- (اص) دومره وهل چې د پوستکي يا څرمنې اغوستو جوګه شي. زيات وهل ، په وهلو شين کول.

**پوټکے** :- (پو + ټَ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ،مذ، وا ،ج : پوټکي] د خاورو ډبه يا اوچت ځاے ، پوټے ، د شګو ډيرے.

**پوټکي والا** :- (پو + ټَ + کِيْ + وا + لا) [ پ ، اس ، مذ] د څرمنو سوداګر ، ګاګړے خرڅوونکے.

**پُو ټُونې** :- (پُوْ + ټُوْ + نې) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] پټهونې ، مورچه، په ځؤ کښې د ناستې ځاے.

**پوټے** :- (پو + ټے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : پوټي، پوټيان]و - پوټکے.

**پوټے** :- (پُوْ + ټے) [ پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : پوټي ] (۱) لړ شان ، پُوټسکے (۲) د ډوډۍ ټکړه يا ذره ، خځوزے ، (۳) د کپړې ټوټه، څيره.

**ــــ پوټے کول**:- (اص) (۱) ذرې ذرې کول ، ټوټې ټوټې کول (۲) کپړه لته څيرې کول (۳) ډېر وهل ډبول

**ــــ پوټے کېدل**:- (اص) (۱) ټوټې ټوټې کېدل ، ذرې ذرې کېدل ، (۲)کپړه لته څيرې کېدل (۳) ډېر وهلے کېدل

**پُوجا**:- (پُوْ +جا) [ ه، اس ، مؤ ] (۱) عبادت ، پرستش (۲) خوشامند ، پوجا پاټ ،

**پوجا پاټ** :- (پُو + جا + پا + ټْ) [ ه، اس ، مذ ] (۱) عبادت ، پرستش ، (۲) خوشامنده ، پُوجا ،

**پُوجي** :- (پُوْ + جيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] ګوډ ، للُون

**ــــ کول**:- (اص) ګوډ کول ، للون کول.

**ــــ کېدل**:- (اص) ګوډ کېدل ، للون کېدل.

**پوغ**:- (پَو + ذْ) [ پ ، ع : فوج ، اس ، مذ ، وا ، ج : پوغونه ] فوځ، لښکر

**پوځي** :- (پَو+ دْزِيْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پوځیان ] فوځي، عسکر، لښکري ، سپاهي

**پُوچ** :- (پُوْ + چْ) [ پ ، اس ، مذ (مؤ وا : پوچه ، ج : پوچې ) ] (۱) بد خولے ، سپک خولے (۲) سپک ،بې عزته،بې ادبه (۳) عبث ، بې فائدې ، فضول، بې مطلبه ، تش (۴) یوه لوبه چې یو په کښې په موټي کښې څۀ څیز پټ کړي ـ د هغۀ ملګري ټول بند موټي وړاندې کړي ـ د بلې ډلې یو کس د یو تن لاس ته اشاره اوکړي او هغه پټ کړے څیز معلوموي ، د ګوتې لوبه ـ

ستا د کوئ بلبل یم بلبل باغ و بستان څۀ کړم
پـــوچ وائے رقیبه چې نـــوا پـــه چمن مـه کړه مصري خان

**ـــــ کول**:- (اص ) د پُوچ لوبه کول ، ګوته کول ـ

**ـــــ کېدل**:- (سو) اص ـ کارتوس یا د بارُود د رنجکو نه جوړ شوے څیز نۀ چلېدل ، کارتوس غل کېدل ، مس کېدل ـ

**ـــــ وئیل**:- (اص ) فضوله خبره کول ، بې مطلبه وېنا کول ـ

**پُوچ** :- (پُوْ + چْ) [ پ (شن) اس ، ص ، مذ] ډډ یا سخا انار یا اکوړ

**پُوچ خُولتوب** :- (پُوچ + خُوْ + لْ + تو + بْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پوچ خولتیا ، بد زباني ، فضوله ژغېدا ، پُوچ خولي ، بې واکي ، پهړتیا ، پوچ ګوئي ـ

**پُوچ خولتیا** :- (پُوچ + خُوْ + لْ + تْ + یا) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـــــ پوچ خولتوب

**پُوچ خولے** :- (پُوچ + خُوْ + لَے ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پوچ خولي ، (مؤ : پوچ خولې ) ] بد زبانه ، بېهوده ، فضول غږېدونکے ، بې واکه ، پهړ ، پوچ ګوئے ـ

**ـــــ کېدل**:-(اص ) بدزبانه کېدل ، بې واکه غږېدل ، فضولې خبرې کول

**پُوچ خولي** :- (پُوچ + خُوْ + لِيْ) [ اف : پ (قاموس ) اس ، مؤ]و ـــــ پوچ خولتوب

**پوچغلے** :- (پُوچ + غْ +لَے ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د ګډو یوه بیماري ـ

**پُوچک** :- (پُوْ + چَ + کْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ] (۱) بې مغزه کم عقل ، تش کدو ـ (۲) خالي کارتوس ، کوکه ـ

**پُوچک** :- (پُوْ + چَ + کْ) [ پ ، اس ، مذ ، (مؤ ، وا : پوچکه ، ج : پوچکې ) ] فضول ، خوشه ټارے ، بې بوده ـ

هیڅا مـــا سره یـــاري نۀ کړه تر سره
ختک واړه پوز پرې کړې پوچکي دي خوشحال خان

**پُوچک** :- (پُوْ+چَ +کْ) [پ ، اس، مذ] لږ څیز، ټُکړه، ذره ، معمولي شے

**پُوچک** :- (پُوْ + چَ + کْ) [ پ (کرم) اس ، مذ] ورکوټے ختکے چې د بوئیں دپاره لاس کښې نیولے شي ـ رېبږ ، کار کُونډے ـ

که په کور کښې ئې مهران دي په جوال (خوشحال)

**پُوچکه** :- (پُوْ + چَ + کَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: پُوچکې] پُوچۍ ، مړه غونې ، هغه هندوانه چې د سپرغې نه راوتې وي او د منې قدرې غټه وي ـ

**پُوچ ګوئے** :- (پُوچ + ګوئے ) [ پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا : پوچ ګویه، ج : پوچ ګوئې ) ] و ـــــ پوچ خولے ـ

چې عمل د مولوي نۀ کا پوچ ګوئے دے
کـــــه پـــــه خپلـــه د مثنوي خبرې وائي مصري خان

**پوچ ګوئي** :- (پُوچ + ګو + ئِيْ) [ پ تر ، اس ، مؤ] و ـــ پوچ خولتوب

پوچ ګوئي ده چې ئې اهل د دنیا کاندي
هـــــر کلام او هـــــر ګـفتار ددې دنیـــا رحمٰن بابا

**پُوچ ورد** :- (پُوچ + وْ + رَ + دْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] کنځل ښېرې ، زیړې، بده وېنا ، بد زباني ـ

**ـــــ وئیل**:- (اف ) اص ـ کنځلې کول ، زیړې او ښېرې کول ، بد غږېدل

**پوچول** :- (پُوْ + چْ + وْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت] (۱) مغز خالي کول ، سر خوړل (۲) ډز کول ، کارتوس خالي کول ـ

**پوچه** :- (پو + چَه ) [ پ (ګن) اس ، مؤ] متر ، د ګرمۍ په موسم کښې په لوښي کې پرتې شوملې څۀ شنې شان اوبۀ شي او څۀ حصه ئې سخته شان پاتې شي ـ دې ته پوچه وائي ـ پوڅه ـ

**پوچۍ** :- (پُوْ + چْ + یَۍ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـ پوچکه

**پوچۍ** :- (پُو+ چَ + یَۍ ) [ پ (خل) اس ] د خربوزو په باغ کښې پاتې شوې کچر یا تُومړۍ ـ کله چې د خربوزو یاختکو باغ تالاشي نو وروستو پاتې شوي واړۀ واړۀ ختکي ـ

**پُوچې بوړې** :- (پُو + چې + بو + ړې ) [ پ ، ص ، مؤ ، ج ] خوشې خبرې ، فضولې خبرې ، عبث خبرې ـ

**پوڅکه** :- (پُوْ + څْس + کَه ) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج : پُوڅکې] کچه دانه ، هغه دانه چې لا پخه نۀ وي ـ

**پوڅکۍ** :- (پو + څْسَ + کَ + یَۍ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] کوتره ، کمتره ـ

**پوڅکۍ** :- (پو + څْس + کَۍ ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : پوڅکي ] پڅکۍ ، د غوړ لاندینۍ نرمه حصه ، پوڅۍ

**پوڅه** :- (پو + څْسه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـــــ پوچه

**پوڅه** :- (پو + څْسَه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] کل ، پوګ ، پوسه

**پوڅه** :- (پو + څْسَه ) [ پ (ب ، خ ) اس ، مؤ ، وا ، ج : پوڅې ] د اډوکې دننه مغز چې اکثر د خوړلو دپاره ایستلے کېږي ـ ګیچۍ چخچے ـ

**پوڅۍ** :- (پو + څْسَ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] لخۍ ، د وړو هغه ګونجۍ چې په لاس کښې جوړه شوې وي ـ

**پوڅۍ** :- (پو + څْسَ + یَۍ ) [ اف : پ ( قاموس) اس ، مؤ] و ـــ پوڅکے

**پوخ** :- (پو +خ) [ پ ، فا : پخته ، ص ، مذ ، وا ، ج : پاخۀ ، (مؤ ، وا، پخه ، ج : پخې ) ] (۱) چې اُوم نۀ وي ـ چې کچه نۀ وي پاتې ـ (۲) زوړ ، رسېدلے (۳) تجربه کار ، پوهه (۴) ټینګ ، مضبوط ، کلک (۵) غوریز ، غوره ، چوڼ چې د ګوتې کښېښودو ځاے په کښې نۀ وي (۶) مشروټ ، پوخنې ، پخناټے ، پوخناټے ، پوخنه ، هغه هلک چې د خپل عمر نه زیاتې هوښیارې خبرې کوي ـ

اُومـۀ کله دي پـاخۀ وائي واعظ
هر چې وائي هغه ښۀ وائي واعظ رحمٰن بابا

لکه پوخ ښکاري دام جوړ په ښۀ ترتیب کا
سـر خوښـې کـا پـه خپـل عقـل پـه هنـر

د خپل یار د عشق له تاوه مصر اووے
دا غـــزل لـــه ابتـــداء تر انتها پوخ مصري خان

**ـــــ بنیاد**:- (اص ) (۱) د آبادۍ چې بنیاد زیات ژور او مضبوط وي ـ (۲) هغه ځوک چې په شا ئې مضبوط کس یا ډله وي (۳) هغه ځوک چې د ښې وینې نۀ وي (۴) د جائیداد خاوند ، د دفتر مالک

**ـــــ پنسل**:- (اص ) (۱) هغه پنسل چې زر نۀ ماتېږي ـ مضبوط او کلک پنسل ، (۲) هغه پنسل چې سکه ئې اودې رنګې وي ـ او د زیاتو نقلونو ویستلو دپاره پکارولے شي ـ

**ـــــ تعمیر**:- (اف ) اص ـ پخه ابادي ، سیمټي ابادي ـ

ـــــ **سړے**:- (اص) (۱) د پاخهٔ عمر سړے ، هغه څوک چې عمر ئې د نيمې نه اوړېدلے وي ـ مشر سړے (۲) هوښيار سړے ، پوهه ، تجربه کار (۳) اتباري سړے ، کره سړے ـ

ـــــ **کول**:- (اف) اص ـ پخول ، پوخول ـ

ـــــ **کوني**:- (اص) (۱) لوے ګانډو (۲) بې غېرته ، دوُوس ، (۳) بې قوله ، بې لوظه (۴) بې حيا ، بې شرمه ، سپين سترګے ـ

ـــــ **کېدل**:- (اف) اص ـ پخېدل ، پوخېدل ـ

ـــــ **لګېدل**:- (اص) (۱) سخت ژوبل کېدل (۲) په پخه نوکرۍ اخستلے کېدل (۳) څهٔ کانړے په سيمټو ، چُونه يا خاوره مضبوط ښخېدل

ـــــ **ليک**:- (اص) (۱) هغه ليک چې په اسانه نهٔ ورانېږي (۲) د چا ليک چې يو خاص طرز لري او بدلېږي رابدلېږي نه ـ (۳) پوخ لوظ پخه اقرار نامه ، پخه وعده ـ

**ورته پوخ کېدل** :- (اف) اص ـ (۱) د چا سخت دښمن کېدل او د بدل اخستو په تکل کښې ګرځېدل (۲) مضبوطېدل ، سختېدل

**پخه خبره**:- (اص) (۱) يقيني خبره (۲) پوخ لوظ او قول ، اتباري خبره

**پوختوب** :- (پوخ + تو + بْ) [پ ، اس ، مذ] پوختيا ، پوخ والے ، مضبوط والے ، ټينګ والے ، کلکوالے ـ

**پوختيا** :- (پوخ + تْ + يا) [پ ، اس ، مؤ] و ـــ پوختوب

**پوخ ښانښت** :- (پوخ + ښا + شْ + تْ + يا ښس + خْ + تْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] کچه غرمه ، د ټکنه غرمې نه وړاندې وخت

**پُوخره** :- (پُوْ + خْ + رَه) [اف : پ (قاموس) ص] وريت پريت ، سوے لوغړن ، کسکر ، دا ټکے د سوخړه سره يو ځاے استعمالېږي ـ لکه : سُوخړه پُوخړه ـ

**پُوخلي** :- (پُوْ + خَ + لِيْ) [پ ، اس ، مؤ] توره غاړه ، بونګي ټوخے ، لويه ټوخې ، بانګي ټوخے ، پُوخلے ، لوے ټوخے ، پاخولے ـ

**پوخنا** :- (پوخ + نا) [پ ، ص] پوخنه ، پوخناټے ، پوخ هلک ، پخناټے ، د خپل عمر نه زيات هوښيار هلک ـ

**پوخناټے** :- (پو + خْ + نا + ټَے) [پ (سو) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پوخاټي] و ـــ پوخنا ـ

**پوخنه** :- (پو + خْ + نَه) [پ (سو) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پوخني] و ـــــ پوخنا ـ

**پوخ والے** :- (پوخ + وا + لَے) [پ ، اس ، مذ] و ـــ پوختوب

**پوخول**:-(پو+ خَ + وْ + لْ) [اف : پ (سيند) مص مت] پخول ، پوخ کول

**پوخېدل** :- (پو + خې + دْ + لْ) [اف : پ (سيند) مص لا] پخېدل ، پوخ کېدل ـ

**پوده**:-(پو + دَه) [پ (ظفر) ص ، مؤ] (۱) بوده (۲) سخا ، خراب ، خوړين

**پودينه** :- (پو + دِيْ + نَه) [فا : اس ، مؤ] وېلنے ، شين شوے ، ايلنے

**پوډر** :- (پو + ډَ + رْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پوډرونه] هغه مېده څيز يا سفوف چې په بېل بېل رنګ کښې د جدا جدا کار دپاره استعمالېږي ـ

**پور** :- (پو + رْ) [پ ، اس، مذ ، وا ، ج : پُورونه] (۱) قرض ، پېر ، (۲) بدل ، قصاص ـ (۳) تاوان ، نقصان ـ

چې ئې پور تر مرګ تر پوره پورې هېڅ دے
هـــئ توبــه د ښلتانـــهٔ لـــه بـــده پـــوره

ـــــ **اخستل**:- (اص) (۱) قرض اخستل ، پور کول ، (۲) بدل اخستل (۳) تاوان اخستل ـ

ـــــ **ادا کول**:- (اص) قرض واپس کول ، د قرض نه ځان خلاصول ـ

ـــــ **اړول**:- (اص) (۱) په چا قرض اړول (۲) په چا څهٔ بدل خېژول ـ

ـــــ **پرې کول**:- (اص) (۱) قرض واپس ورکول ، قرض خلاصول ـ (۲) مړ کېدل ، ساه ختل ـ

ـــــ **پورې کېدل**:- (اص) قرض اوښتل ، د چا مقروض کېدل ،

ـــــ **کول**:- (اص) (۱) قرض اخستل ، پور وړل ، پور اخستل ـ (۲) زبادول ، ثابتول ، وراړول ـ

ـــــ **ورکول**:- (اص) (۱) قرض ورکول ، (۲) مړ کېدل ، پور پرې کول

ـــــ **وړل**:- (اص) پور اخستل ـ

**پُور** :- (پُوْ + رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پُورونه ، پُوره] برګ ، ځل ، وار ـ لکه : د ګاڼې پُور ، د مېوې پُور ، او داسې نور ـ

**پُور** :- (پُوْ + رْ) [فا ، اس ، مذ] (۱) کلے اباد ي ـ لکه : خان پُور ، (۲) زوے ، بچے

**پُور** :- (پُوْ + رْ) [پ (سو) اس ، مذ ، وا] (۱) رده ، بوره ، وار (۲) تهه پړک قط ـ په دېوال ئې يو پُور بوتلو "

ـــــ **په پور**:- (سو) اص ـ قط په قط ،

**پُوراينه** :- (پُوْ + را + يْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] پوره کونه ، پائې ته رسونه ، سرته رسونه ، بشپړونه ، پورائي ـ

ـــــ **کول**:- (اف) اص ـ پوره کول ، پورائي کول ، پورائي نيول ـ

ـــــ **کېدل**:- (اف) اص ـ پوره کېدل ،

**پورائي** :- (پُو + را + ئِيْ) [اف ، پ (قاموس) اس، مؤ] و ـــ پوراينه

ـــــ **کول**:- (اف) اص ـ و ـــــ پوراينه کول ـ

ـــــ **نيول**:- (اف) اص ـ و ـــــ پوراينه کول ـ

**پورب** :- (پُوْ + رَ + بْ) [ه ، اس ، مذ] نمرختهٔ ، مشرق ـ

**پُوربے** :- (پُوْ + رْ + بے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پوربيان ، پوربي (مؤ : پوربۍ)] د پورب اوسېدونکے ، د هندوستان د سيمې د يو قوم يو غړے چې اکثر د پېزار چيرولو او سائنس توب کار کوي ـ

**پوربي** :- (پُوْ + رْ + بِيْ) [پ ، اس ، ج] (۱) د پوربيانو ژبه (۲) د پُورب سره تعلق لرونکے ـ

**پورتنے** :- (پور + تْ + نے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : پورتني (مؤ : پورتنۍ)] (۱) پاسنے ، پاس ، د بره ، پورته (۲) د پاس علاقې اوسېدونکے ، د غرهٔ اوسېدونکے ـ

ـــــ **مخلوق**:- (اص) فرښتې ، اسماني مخلوق ـ

**پورته**:-(پو + رْ + تَه) [پ ، ص] (۱) بره ، پاس ، اوچت (۲) په هوا کښې ، په فضا کښې (۳) په مرتبه کښې اوچت ، په ترقۍ ، مخ په بره ـ (۴) اوچته علاقه ، هغه سيمه چې ورنه مخ په کښته اوبهٔ راځي ـ

چې نظر په مزکه نهٔ کړې
پـــورتـــه ګورې په هوا        معزالله خان

چې په پورته دې کاغذ ګوډئ درُومي
که ښتيا ده دا دے درومي بې طنابه        خوشحال خان

ـــــ **ښکته کېدل**:- (اص) پورته کښته کېدل ، لاندې پاس تلل راتلل

ـــــ **کتل**:- (اص) پاس کتل ، سترګې ورکول ـ

ـــــ **کښته زغاښتل**:- (اص) × پورته کښته زغلېدل ، زيات پرېشانېدل سر وهلے بر وهلے ګرځېدل ، سرګردانه کېدل ، څهٔ څيز لټول ـ

ـــــ **کښته کېدل**:- (اص) و ـــ پورته ښکته کېدل ـ

ـــــ **کښته ورته کېدل**:- (اص) (۱) چاته لر بر کېدل (۲) د چا خاشامنده برامنده کول ـ

ـــــ **کول**:- (اص) (۱) پاس اوچتول ، خېژول (۲) ترقي ورکول ، مرتبه

زیاتول (۳) په لاس یا غېږ کنبې اوچتول (۴) اخستل ، غونډول.

**ـــــ کېدل**:- (اص) (۱) پاس اوچتېدل (۲) ترقي کول ، مرتبه زیاتېدل (۳) اخستلې کېدل ، غونډېدل ، یو ځاے کولے کېدل (۴) تیارېدل په کار لاس لګول (۵) نرخ ګرانېدل (۶) د راټوکېدلو نه پس د بوټي وده کول (۷) پرېوتے بوټے بیا رانېغېدل.

**بلا پورته کېدل** :- (اص) (۱) بلا راولاړېدل ، بلا مخې ته راتلل ، په مصیبت اوښتل ، په غم اخته کېدل ، (۲) د بلا نه خلاصېدل ، بلا غائبېدل.

**راپورته کېدل** :- (اص) (۱) لکېدل ، نېغېدل ، ډانډېدل ، د شهوت پیدا کېدل (۲) راښکاره کېدل ، راولاړېدل (۳) روانېدل.

**سترګې پورته کول**:-(اص) سترګې اوچتول ، سترګې غړول ، چاته کتل

**سر پورته کول**:- (اص) (۱) مخ په بره او په ترقۍ روانېدل (۲) سر را اوچتول ، راوېښېدل.

**پورته کونه** :- (پورته + کَ + وْ + نَه) [ پ ، حمص] (۱) اوچتونه ، پاس خېژونه ، هوا ته لړه کونه (۲) راخستنه ، را اوچتونه.
(۳) ترقي ورکونه ، مرتبه زیاتونه.

**پورته کوُونکے** :-(پورته + کَ + وُوْ + نْ + کَے) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پورت کوونکي (مؤ : پورته کوُونکې) ] (۱) اوچتوونکے پاس خېژوُونکے ، هوا ته لړه کوُونکے (۲) را اخستونکے ، را اوچتوُونکے ، (۳) ترقي ورکوُونکے ، مرتبه زیاتوُونکے.

**پورته کېدنګ** :- (پورته + کې + دْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پورته کېدنه.

**پورته کېدنه** :- (پورته + کې + دْ + نَه) [ پ ، حمص] (۱) پورته کېدنګ ، اوچتېدنه ، پاس ختنه ، بره تلنه ، (۲) ولاړېدنه ، چګېدنه ، روانېدنه (۳) ترقي کېدنه ، مرتبه زیاتېدنه .

**پورته کېدونکے** :- (پورته + کې + دُوْ + نْ + کَے) [ پ ، فا ، مف ، مذ ، وا ، ج : پورته کېدونکي (مؤ : پورته کېدونکې) ] (۱) اوچتېدونکے ، پاس ختونکے
(۲) ولاړېدونکے ، روانېدونکے ، چګېدونکے (۳) ترقي کوونکے ، مرتبه زیاتېدونکے.

**پورته والے** :- (پورته + وا + لے) [ پ ، اس ، مذ] (۱) اوچتوالے ، بلندي (۲) ترقي ، وده.

**پورټ** :- (پو + رْ + ټْ) [ انګ ، اس ، مذ ] بندر ، بندرګاه.

**پورټ بلېیر** :- (پورټ + بْ + لې + يَ + رْ) [ انګ ، اس ، معر ، مذ] توري اوبهٔ ، د انډیمان د جزیرو یو ښار چې انګرېزانو به عُمري قېدیان هلته لېږل

**پورټ ټرسټ** :- (پورټ + ټْ + رَ + سْ + ټْ) [ انګ ، اس ، معر ، مذ ، وا ، ج : پورټ ټرسټونه ] د بندر د انتظام کولو مجلس.

**پورټر** :- (پو + رْ + ټَ + رْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پورټران ] قلي ، مزدور ، پانډي ، پنډي.

**پورځل** :- (پو + رْ + ځْ + لْ) [ پ (ق) مص مت ] خبرې کول ، رغېدل ، ګنېدل

راز په شپه له چا کړې قبل و قال له چا پورځې
چا سره غولول کړے عیان ، یار نهان د چائے مصري خان

**پورچ** :- (پو + رْ + چْ) [ انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پورچُونه ] د کور د برامدې بهر ته وتلې حصه چې موټر ورته دننه راتلې شي.

**پوردار** :- (پور+ دا + رْ) [ اف : پ (سیند) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: پورداران]
(۱) پور والا ، پور لرونکے ، هغه څوک چې په بل چا ئې قرض ولاړ وي.(۲) شن : قرض پور ،

**پوردګار** :- (پُوْ + رْ + د + ګا + رْ) [ پ (سو) فا : پروردګار ،اس ، مذ] خدا ے پاک ، الله پاک.

**پورژنے** :- (پور + ژْ + نَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پورژني ] (۱) مسافر ، پردېسي ، بې وطنه (۲) فراري ، مفرور ، د وطن نه تښتېدلے.

**پورغو** :- (پور + غو) [ اف : پ (قاموس) ص ]سرئ ، یو زمیندار د بل نه د قلبې دپاره په بدل غوایان اوغواړي خپل کار پرې اوکړي او بیا دے خپل غوایان د کار دپاره هغهٔ ته ورکړي.دې ته پورغو وائي.

**پورلرُونکے** :- (پور + لَ + رُوْ + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پور لرونکي ] و ـــــ پور دار.

**پور والا** :- (پور + وا + لا) [ پ ، اس ، ص ، مذ] و ـــــ پور دار .

**پور وړے** :- (پو + رَ + وْ + ړے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پور وړي، (مؤ : پور وړې)] (۱) پور دار ، پور والا ، لور لرونکے (۲) هغه څوک چې قرض پرې باندې وي.مقروض

لړ ئې راکړه ډېر ئې یوړل
پو روړے ئې سود خورد خوشحال
هر چې ستا په لور قدم د راستۍ کېږدي
که ئې زیان وي زهٔ رحمٰن ئې پوروړے

**ـــــ کول**:- (اص) (۱) په چا قرض راړول ، مقروض کول (۲) بدل پرې اړول

**ـــــ کېدل**:- (اص) (۱) په چا قرض اوړېدل ، مقروض کېدل ، (۲)بدل پرې وراړېدل.

**پور وړو نیول** :- (اف) اص.(۱) د قرض ورکوُونکي سرې قرض اخستُونکي د خپل پور غوښتل .د پور غوښتلو په لړ کنبې لاس وراچول ، د پور تقاضا کول (۲) لوے بول راټینګېدل ، ټینګ غول ورتلل.

**پورول** :- (پو + رَ + وْ + لْ) [ پ ، مص مت ] (۱) پور کول ، قرض کول ، په قرض اخستل ، (۲) زبادول ، په چا څهٔ ور اړول.

**پورونګ** :- (پو + رَ + وْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و- پورونه.

**پورونه** :- (پو + رَ + وْ + نَه) [ پ ، حمص] (۱) پورُونګ ، پور کونه ، قرض کونه ، په پور غوښتنه (۲) زبادَونه ، ور اړونه.

**پور وونکے** :- (پو + رَ + وُوْ + نْ + کَے) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: پور وونکي : (مؤ : پوروُونکې) ] (۱) پور کوونکے ، قرض اخستونکے ، پور غوښتونکے (۲) زبادوونکے ، ور اړوونکے ، (۳) پوروُونے ، اینګولے ، لمدبل ، بوړ.

**پوروُونے** :- (پو + رَ + وُوْ + نَے) [ پ ، اس ، مذ] پورووُونکے ، اینګولے ، بوړ ، لمدبل ، پخکړے ، لاونړ.

**پُوره** :- (پُوْ + رَه) [ پ ، ص ] (۱) مکمل ، کامل ، تول ثابت ، ګرد ، سالم (۲) ختم ، سرته رسېدلے (۳) ځاے ته رسېدلے.

**ـــــ کول**:- (اص) (۱) سرته رسول ، ختمول ، تکمیل ته رسول (۲) منظورول ، منل

**ـــــ کېدل**:- (اص) (۱) سرته رسېدل ، ختمېدل ، مکمل کېدل.
(۲) منظورېدل.منلے کېدل ، دعا قبلېدل.

**ـــــ نیمګړي**:- (اص) لاتدې باندې ، موتازي ، حاجت.

**په کور پوره** :- (اص) چې چاته موتازه نهٔ دي .هغه څوک چې هر څهٔ ئې بِس بسیار وي.بې حاجته.

**دانه پُوره کېدل**:-(اص) عمر ختمېدل ، مړ کېدل ، د ژوند اوربشه ختمېدل

**پُوره** :- (پُوْ + رَه) [پ ، فا : پُر ، ص ، مؤ] ډکه

ولـې معـزالله پـه سـفر درومـې بـې اسـبابه
فکـر د توښـې کـړه همیـاني کـړه خپلـه پُـوره

**پورې** :- (پو + رې) [پ ، ص] (۱) تر هغه ، ته (۲) بند (۳) شروع ، ابتداء (۴) د سیند یا دریاب بله غاړه ، پورې اخوا (۵) ورسره ، نژدې ، جُخت (۶) په وجه ، په سبب (۷) درایسته ، هاغه ، مخامخ (۸) په ذمه ، سره ، لکه: هاغه دې اوښان راغلل پورې په دامان راغلل ، لکه : چا پورې دې کار ؤ .

تـر قضـا پـورې د هیچـا چـاره نشـته
او کـه نـه تـر زاړهٔ ذئبـه لازېـرک یـم

معــزالله چــې پــه ژړا شــي
ســتا پـرې پـورې شـي خنـدا

شرمنده که ستا تر قده پورې نهٔ وے
د دېوال وروستو څـهٔ له پټ چار شهٔ معزالله خان

**ـــــ ایستل**:- (اص) د دریاب بلې غاړې ته رسول ، د سیند بلې غاړې ته اړول ، پورې باسل ، پورې ویستل.

**ـــــ باسل**:- (اص) و ـــــ پورې ایستل.

**ـــــ تړل**:- (اص) (۱) څهٔ څیز د بل څیز سره په پړي یا مزي تړل (۲) په چا تهمت لګول ، په چا پسې هسې یوه خبره مشهورول ، پورې غوټه کول (۳) په پیټکه پورې غوټه کول.

**ـــــ غوټه کول**:- (اص) و ـــــ پورې تړل

**ـــــ کول**:- (اص) (۱) پورې ایستل ، پورې باسل (۲) بندول (۳) لګول (۴) لګول ، لکه رانجه پورې کول. (۵) بلول ، لکه : اور پورې کول (۶) تپل (۷) مښل ، خوشبوئي یا عطر لګول (۸) د اینګولي یا پخکړې سره ډوډۍ خوړل.

**ـــــ کېدل**:- (اص) (۱) بلې غاړې ته پورې وتل (۲) اور لګېدل ، اور ورته کېدل ، (۳) ور بندېدل ، (۴) عطر مښلې کېدل (۵) تپلې کېدل

**ـــــ مښتل**:- (اف) اص.څهٔ څیز په بل باندې چسپان کول.

**ـــــ مښل**:- (اص) (۱) څهٔ څیز په بل څیز لګول (۲) سولول ، رګړ ورکول

**ـــــ ویستل**:- (اص) و ـــــ پورې ایستل

**تر کوره پورې** :- (اص) تر ځایه پورې ، تر آخري حد لکه :- '' غل تر کوره پورې مه زغلوه ''

**ډوډۍ پورې کـول** :- (اص) (۱) ډوډۍ په تندور لګول (۲) اینګولي سره ډوډۍ خوړل.

**پورې خوا** :- (پورې + خوا) [پ ، ص] پورې غاړه ، د سیند یا دریاب په بله غاړه ، په هغه طرف.

**پـورې راپـورې** :- (پـورې + را + پـورې) (پ ،ص) (۱) پـورې ، وورې ، په هغه غاړه ، په دې غاړه (۲) ارپار ، دواړه طرف ته وتې سُورے.

ښخ مې ستا د بنو غشي په سینه دي
پـورې راپـورې مې وتلي تر اینه دي رحمٰن بابا

**پورې غاړه** :- (پورې + غا + ړَه) [پ ، ص ، مؤ] و ـــــ پور ې خوا.

**پورې کوونکے** :- (پـورې + کَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پـورې کـوونکي ، (مـؤ : پـورې کـوونکې) ] (۱) بلـې غـاړې تـه بـوونکے یـا سـرونکے (۲) بنـدوونکے (۳) ډوډۍ اینګـولي سـره خوړونکے ، پورې کوونے.

**پورې کونګ** :- (پورې + کَ + وْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پورې کونه.

**پورې کونه** :- (پورې + کَ + وْ + نَه) [پ ، حمص] (۱) بلې غاړې ته پورې باسنه (۲) بندونه (۳) ډوډۍ له اینګولي سره لګونه.

**پورې کُوونے** :- (پورې + کَ + وُوْ) نَے) [پ ، اس ، مذ] (۱) پـورې کـوونکے ، پورې باسونکے (۲) بندوُونے ، (۳) اینګولے ، لمدبل ، پخکړے ، بوړ.

**پورې کېدنګ** :- (پورې + کې + دْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پورې کېدنه.

**پـورې کېدنه** :- (پـورې + کې + دْ + نَـه) [پ ، حمص] (۱) د دریاب بلې غاړې ته وتنه (۲) د وَر بندېدنه (۳) عطر یا نکریزې وغېره لګېدنه (۴) اورلګېدنه (۵) ډوډۍ له اینګولي سره خوړلے کېدنه

**پورې واتهٔ** :- (پـورې + وا + تـهٔ) [پ ، حمص] پورې وتنه ، په اُوبو پورې غاړې ته تېرېدنه ، پورې وتل ، پورې وتنګ.

**پورې وتل** :- (پورې + وَ + تْ + لْ) [پ ، مص مت] و ـ پورې واتهٔ

**پورې وتلے** :- (پورې + وَ + تْ + لَے) [پ ، فاع ، مذ ، وا ، ج : پورې وتلي (مؤ : پورې وتلې) ] هغه څوک چې په اوبو پورې غاړې ته تېر شوے وي.

**پورې وتنګ** :- (پورې + وْ + تْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پورې وتنه

**پورې وتنه** :- (پورې + وَ + تْ + نَه) [پ ، حمص] و ـــــ پورې واتهٔ

**پورې وتُونکے** :- (پورې + وَ + تُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فـاع ، مذ ، وا ، ج : پورې وتونکي (مؤ : پورې وتونکې) ] په اوبو پورې غاړې ته تلونکے

**پـورې وورې** :- (پـورې + وو + رې) [پ ، ص] (۱) و ـــــ پـورې راپـورې (۲) په مېنځ کښې ،نهٔ په مړو کښې نهٔ په ژوندو کښې ، په بد حال

پـــورې اووری به وتهٔ زما له زړهٔ نه
چې نیولې دې نېزه وه د عشق نېغه معزالله خان

نـــهٔ د مړو په حساب نهٔ د ژوندو یم
عاشقي کړم تر دا میانه پورې اووری حمید

**ـــــ تـرې وتـل**:- (اص) څهٔ څیـز دواړه طرف تـه د بـل څیـز نـه تېرېـدل ، سورے کول.

**پورې وهل** :- (پـورې + و + هَ + لْ) [پ ، مص مت] (۱) دیکه کـول ، ټېله ورکول ، تنبول (۲) چاته په څهٔ کار کښې مدت ورکول.

**پورې وهلے** :- (پورې + وْ + هْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پورې وهلي (مؤ : پورې وهلې) ] دیکه کړے شوے ، ټېله ورکړے شوے ، تنبولے.

**پورې وهنګ** :- (پورې + وْ + هْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پورې وهنه.

**پورې وهنه** :- (پورې + وْ + هْ + نَه) [پ ، حمص] دیکه کونه ، ټېله کونه ، تنبونه.

**پورې وهُونکے** :- (پورې + وْ + هُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا ، ج : پـورې وهـونکي ، (مـؤ : پـورې وهـونکې) ] دیکـه ورکـوونکے ، ټېلـه کوُونکے ، تنبوونکے.

**پـوړ** :- (پـو + ړْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مـذ (مـؤ ، وا: پـوړه ، ج: پوړې) ] (۱) نیم پخته ، کچه (۲) بُنیاد ه، رده ، بېخ (۳) لوے پُوزے (۴) د ګنې پوک (۵) زلموټے ، هغه څوک چې ځواني تـه نزدې وي او شونډه ئې په شنه کېدو وي.

**پُوړ** :- (پُوْ + ړْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) قطار ، منزل ، صف ، مرتبه (۲) ښکېل ، د پښو تړلو زولنې.

**پُوړ** :- (پُوْ + ړْ) [ پ (ب ، خ ) اس ، مذ ] بوس ، پروړه ، پيړ

**پُوړ** :- (پُوْ + ړْ) [ پ (گن) اس ، مذ ، وا ، ج : پُوړُونه ] (۱) د ميچنې پل ، (۲) تهه ، پټ

**پوړاينه** :- (پو + ړا + يْ + نَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] تسله ، اطمينان ، ايمني

**پُوړ پر پُوړ** :- (پُوړْ + پَ + رْ + پُوړ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ ] منزل په منزل ، تهه په تهه ، پټ په پټ ، لاندې پاس

—— **پرې کېدل**:- (اف) اص.پوړ پر پوړ توئېدل ، د زوړ والي په وجه جامې خرانگې خرانگې يا ريښې ريښې کېدل.

—— **توئېدل**:- (اف) اص.و —— پوړ پر پوړ پرې کېدل.

**پُوړده** :- (پُوْ + ړْ + دَه) [ پ (ب ، خ ) اس ، مؤ ] په تسله ، په اطمينان مطمئن ، پوړه ، خاطر جمع.

**پوړنده** :- (پُوْ + ړَ + نْ + دَه) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مؤ ، وا ، ج : پوړندې ] (۱) گرمه ايره (۲) توده شگه يا خاوره

**پوړنده توب** :- (پُوړنده + تو + بْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پوړنده تيا ، پوړنده والے ، د نرمې اوگرمې خاورې په شان.

**پوړنده تيا** :- (پُوړنده + تْ + يا) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] و —— پُوړنده توب

**پُوړنده خاوره** :- (پُوړنده + خا + وْ + ره) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] وچه او نرمه خاوره.

**پُوړنده والے** :- (پُوړنده + وا + لَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و —— پُوړنده توب

**پوړنے** :- (پو + ړْ + نَے) [ پ ،اس ، مذ ، وا ، ج : پوړنې ] پړُونے ، ټکرے ، پټکے ، د زناناؤ څادر ، لُوپټه.

**پوړو** :- (پو + ړُوْ) [ پ (ب ، خ ) اس ، مذ ، وا ، ج : پوړو ون ، پوړو گون ] (۱) پاړو ، دم گرے (۲) چالاک ، مکار ، ټگ ، برگ.

**پوړه** :- (پو + ړَه) [ پ (گن) اس ، مؤ ، وا ، ج : پوړې ] و —— پُوړه

**پوړه** :- (پو + ړَه) [ اف : پ (قاموس) ص ] و —— پُوړده.

**زړۀ پوړه کول** :- (اف) اص.خاطر جمع کول ، تسله کول.

**زړۀ پوړه کېدل** :- (اف) اص.خا طر جمع کېدل ، تسله کېدل.

**پُوړه** :- (پُوْ + ړَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پوړې ] پوړه، د تان يا اصطبل صفا کولو پوړې يا بېلچه.

**پوړه زړۀ** :- (پوړه + ز + ړۀ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص مذ] جمع خاطر ، مطمئن زړۀ ، يخ ټټر.

**پوړه زړۀ توب** :- (پوړه + زړۀ + تو + بْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پوړه زړۀ والے ، خاطر جمعې ، د زړۀ تسله.

**پوړه زړۀ والے** :- (پوړه + زړۀ والَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و —— پوړه زړۀ توب

**پُوړۍ** :- (پُو + ړَ + يَى) [ پ ، ه : پوري ، اس ، مؤ] په غوړو کښې سرۀ کړے دمبدې نرمه شان ډوډۍ.

**پوړۍ** :- (پُوْ + ړَ + يَى) [ پ ، ه : پُرا يا پړيا ، اس ، مؤ] پوڼۍ ، دارو يا داسې بل څيز چې په کاغذ کښې نغښتې وي.

**پوړۍ** :- (پُوْ + ړَ + يَى) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هغه بېلچه شان چې پړے وراچولے شوے وي.او دوه کسان کار پرې کوي.چاري ، کراه.

**پوړۍ** :- (پو + ړَ + يَى) [ پ ،ا س، مؤ ] (۱) اندرپايه ، زينه ، پارسنگ ، پارچنگ (۲) د اندرپائې پاټکے.

**پوز** :- (پَو + زْ) [ پ ،ع ، فوج ، اس ، مذ ، وا ، ج : پوزونه ، پوزينه ] (۱) لښکر ، فوځ (۲) ډېر زيات خلق.

**پوزمير** :- (پو + زْ + مِيْ + رْ) [ پ (سو) اس ، ص ، مذ ] پوزه ور ، غټ پوزے.

**پوزه** :- (پو + زَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پوزې ] (۱) پېزه ، پزه ، سُونډه ، د خولې او د سترگو په مېنځ کښې د مخ هغه حصه چې باد پرې اخستے شي.(۲) د غر يا نغري راوتے څوکه.

سترگې دې روڅې پوزه نور کېږدې په مخ کښې
غـابښ او شـونـډې ژبــه خولهٔ سره پرداز کا      خوشحال خان

—— **اچول**:- (اص) په چا گرنگ ورتريل.

—— **اوچتول**:- (اص) عزت ساتل ، رنگ ښهٔ کول.

—— **اُوړدول**:- (اص) زيات ځان خفه کول ، د خفگان ، غم او مرورتيا اظهار کول.

—— **بندېدل**:- (اص) (۱) د زُکام يا نزلې په وجه د پوزې په ذريعه ساه په تکليف اخستل (۲) د پوزې نه د روانې وينې بندېدل.

—— **پا کول**:- (اص) پوزه صفا کول ، پوزه سوڼ کول.

—— **پټول**:- (اص) (۱) د بوئي نه پوزه بندول (۲) د زناناؤ د پړدې په خاطر بُوزي وهل (۳) تربُوزک وهل.

—— **پربکړې**:- (اص) (۱) هغه څوک چې پوزه ئې پربکړې شوي وي - (۲) خود د ځان په نصيحت که موعظ.

—— **پرې کول**:- (۱) د چا نه پوزه غُوڅول (۲) شرمول ، شرمنده کول ، په شرمونو شرمول.

—— **پرې کېدل**:- (اص) (۱) د چا پوزه غُوڅېدل (۲) شرمېدل ، بې عزته کېدل ، د خلقو د نظر نه پرېوتل.

—— **پرسول**:- (اص) (۱) ځان مرورول (۲) ځان غصه کول (۳) په وهلو د چا پوزه ډډول.

—— **پوزه کېدل**:- (اص) پوزه ډېره زياته غټېدل ، پوزه د اندازې نه زياته غټېدل.

—— **تخنېدل**:- (اص) د زکام علامه ظاهرېدل.

—— **تروه کول**:- (اص) پوزه چوڼول ، کرکه کول.

—— **توره ول**:- (اص) ځان نه اوچ په اوچه استکار جوړول ، بې تجربې ځان ته هر فن مولاوئيل.

—— **جوړول**:- (اص) (۱) بېکاره او نالائق کس ته په چل ول څهٔ مقام پيدا کول (۲) د چا حيا راوستل (۳) پوزه تروه کول يا راکښل.

—— **چاؤدل**:- (اص) د بيمارۍ په وجه په سپږمو کښې زخم جوړېدل ،

—— **چوڼول**:- (اص) د څهٔ څيز نه کرکه کول ، بدمنل ، پوزه تروه کول

—— **څڅېدل**:- (اص) (۱) د پوزې نه گرنگ بهر ته راتلل ، پوزه بهېدل (۲) د بېکارۍ ، سستۍ او بې حسۍ نخښه.

—— **دُوړېدل**:- (اص) (۱) د مرگ نه پس د پوزې سر ريژېدل (۲) د بيمارۍ په وجه د پوزې سر ريژېدل.

—— **راکښل**:- (اص) (۱) د څهٔ کار ببخي نه کولو قسم خوړل (۲) په څهٔ کار پښېمانه کېدل (۳) معافي غوښتل (۴) د څهٔ څيز نه کرکه او نفرت کول (۵) په پوزه باد اخستل (۲) بهېدونکې پوزه بېرته راکښل.

—— **راوتل**:- (اص) پوزه بهېدل ، پوزه څڅېدل ، د پوزې نه گرنگ رابهېدل

—— **رژېدل**:- (اص) د بيمارۍ په وجه پوزه دُوړېدل.

—— **ساتل**:- (اص) حيا ساتل ، عزت ساتل ، د شرمندگۍ نه بچ کول

—— **سره کېدل**:- (اص) (۱) چرگه اگو ته تيارېدل (۲) پوزه وينې وينې کېدل (۳) زيات غُصه کېدل.

ـــــ **سوری کېدل**:- (اص) د چارګل، پېزوان یا تېک دپاره پوزه کښې سورے کول (۲) چا ته مهار وراچول.

ـــــ **سوبُول**:- (اص) (۱) د پوزې نه ګندګي او ګرنګ په زور بهر ویستل (۲) د ښځې ویر کول، په ژړا ژړا کښې پوزه بیَول.

ـــــ **غټېدل**:- (اص) د ځوانئ علامې پېدا کېدل، زلموټے کېدل

ـــــ **کېدل**:- (اص) د یو کس د خپل خاندان د عزت او درناوي سبب جوړېدل.

ـــــ **کښېښول**:- (اص) حیا راوستل، عزت راوستل، د شرمندګۍ نه بچ کول، پرده اچول.

ـــــ **ماتېدل**:- (اص) د پوزې نه وینې راجاري کېدل.

ـــــ **مونجی کېدل**:- (اص) پوزه چتېدل، د پوزې په ماتېدو اواز بدلېدل، د پوزې سر پرېکېدل.

ـــــ **نیول**:- (اص) د بدبوئ نه خپله پوزه بندول.

**پوزې ته اوبهٔ اچول** :- (اص) پوزه وینځل.

**پوزې له راتلل** :- (اص) ډېر تنګېدل، زیات تنګېدل

**په پوزه اوبهٔ اخستل** :- (اص) په دریاب، تالاب یا کوهي کښې په پوزه اوبهٔ ختیې ته تېرېدل.

**په پوزه کښې خبرې کول**:- (اص) ګونې ګونې خبرې کول.

**په پوزه کښې مُهار اچول** :- (اص) د چا پېزواني کول، څوک خپل تابع کول، په چا دومره اثر اچول چې بله ترې نهٔ شي کولے.

**په پوزه کښې ګوښېدل** :- (اص) په پوزه کښې ږغېدل.

**په پوزه کول** :- (اص) پېزوان، تېک یا د چارګل پوزې ته اچول.

**په پوزه ګوته کښېښودل** :- (اص) د حېرانتیا اظهار کول، اکثر ښځې په مجلس کښې د حېرانګۍ په ډول د ښي لاس مسواکه ګوته په پوزه کېږدي - او وئ خورې ورسره وکړې.

**په پوزه مچ نهٔ پرېښودل**:- (اص) د چا خبره نهٔ وړل، زیات غصه ناک کېدل، په معمولي خبره خفه کېدل.

**د پوزې پړے**:-(اص) د پوزې مهار، په بل پسې بې وسه تګ ته مجبور

**د پوزې نه اوبزاندېدل** :- (اص) ډېر زیات غمجن کېدل.

**پوزه ور** :- (پوزه + وَ + رْ) [پ، اس، ص، مذ (مؤ،وا: پوزه وره، ج: پوزه ورې)] و ـــــ پوزمیر.

**پوزي** :- (پو + زِيْ) [پ، اس، مذ، وا، ج: پَوزیان] فوځي، عسکر

**پُوزے** :- (پُوْ + زَے) [پ، اس، مذ، وا، ج: پُوزي] انډېرے، پوزکے، د مزرو جوړ هغه څیز چې په مزکه غوړولے شي - ځینې خلق ئې د تولائي په ځاے په کټ هم اچوي.

که د زورو په مسند که شاهان حظ
د مـــزریو په پوزي کا خواران حظ   معزالله خان

**پوزے** :- (پَ + وُ + زْے) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] مهار، هغه رسۍ چې د اوښ پوزې ته اچولې شوې وي او بیا ئې په اُوربوز راښکلې شوې وي.

**پُوزیـار** :- (پُـوْ + زْ + یـا + رْ) [اف: پ (قـاموس) اس، ص، مـذ] پُـوزے جوړوُونکے.

**پوزیشـن** :-(پـو+زِيْ + شَ + نْ) [انـګ، اس، مـذ، وا، ج: پوزیشـنونه] (۱) ځاے، موقعه، مورچه، مقام (۲) حالت، حېثیت (۳) انداز، طرز (۴) نکته، خیال (۵) عهده، مرتبه

ـــــ **پرېښول**:- (اص) مورچه پرېښول، مورچې نه روستو کېدل.

ـــــ **حاصلول**:- (اص) په امتحان یا مقابله کښې یو خاص مقام موندل

ـــــ **نیول**:- (اص) (۱) مورچه نیول، په ځۀ کښې کښېناستل (۲) په مورچه قبضه کول.

**پُوژوهل** :- (پُوْ + ژْ + وَ + هْ + لْ) [پ (ګن) مص مت] پُوکنول، په خولهٔ اوبهٔ تُو کول، پُوژویل، پُوړل.

**پُوژویل** :- (پُوْ + ژْ + وَ + يْ + لْ) [پ (ب، خ) مص مت] و ـ پوژوهل

**پُوړ** :- (پُو + ژْ یا پُو + ګْ) [اف: پ (قاموس) اس] (۱) پوژ، د اوبو په خولهٔ د پاشلو عمل (۲) د اینګر د پُوکي اواز.

**پُوړل** :- (پُوْ + ژ + لْ یا پُوْ + ګَ + لْ) [اف: پ (قاموس) مص مت] پوژوهل، پوژویل، پوکنول. پوړدل.

**پُوړلے** :- (پُوْ + ژْ + لَے یا پُوْ + ګْ + لَے) [اف: پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج: پوړلي (مؤ: پُوړلې)] پُوژوهلے، په خولهٔ څهٔ اوبهٔ یا بل څهٔ پوکنولے، پُوړولے

**پُوړنګ** :- (پُوْ + ژ + نْ + ګْ یا پُوْ + ګْ + نْ + ګْ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـــــ پُوړنه.

**پُوړنه** :- (پُوْ + ژْ + نَه یا پُوْ + ګْ + نَه) [اف: پ (قاموس) حمص] پُوړونه، پُوړونګ، پُوړنګ، پوژوهنه، په خولهٔ اوبهٔ یا بل څیز پُوکنونه.

**پُوړول** :-(پُوْ + ژَ + وْ + لْ یا پوْ + ګَ + وْ + لْ) [پ، مص مت] و ـ پُوړل

**پُوړولے** :- (پُـوْ + ژَ + وْ + لَے یـا پُـوْ + ګَ + وْ + لَے) [پ، مف مذ، وا، ج: پُوړولي (مؤ: پوړولې)] و ـــ پُوړلے.

**پُوړونکے** :- (پُوْ + ژُوْ + نْ + کَے یا پُو + ګُوْ + نْ + کَے) [اف: پ (قاموس) اس، فـا ع، مـذ، وا، ج: پـوړونکي (مـؤ: پُـوړونکې)] پُوژوهـونکے، پُوړوُونکے، په خولهٔ اوبهٔ یا بل څیز پُو کنوُونکے.

**پوړونـــګ** :- (پُـوْ + ژَ + وْ + نْ + ګ یـا پُـو + ګَ + وْ + نْ + ګْ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـــــ پُوړنه.

**پُوړونه** :- (پُوْ + ژَ + وْ + نَه یا پُوْ + ګَ + وْ + نَه) [پ، حمص] و ـ پوړنه

**پُوړوونکے** :- (پُوْ + ژَ + وُوْ + نْ + کَے یا پُوْ + ګَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ، اس فا ع، مذ، وا، ج: پُوړوُونکي (مؤ: پُوړوونکې)] و- پوړونکے.

**پُوړے** :- (پُوْ + ژَے یا پُوْ + ګَے) [پ، اس، مذ] یو قسم واښهٔ چې ښخ ئې د پیاز په شان وي.

چې کُنـــدئ جینۍ وشـــوه غـــم پېـــدا شهٔ
هغه ځاے د اور لنبې شي چې پوړے دے   خوشحال خان

**پوس** :- (پو + سْ) [پ، اس، مذ] تپوس، پوښتنه.

**پوس** :- (پو + س) [اف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، (مؤ، وا: پوسه ج: پوسې)] څورب ځاروے، غټ او تیار ځناور، نرے ځناور

**پُوسپوسک** :- (پُوْ + سْ + پُوْ + سَ + کْ) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] یو خړ رګې چینجے چې اکثر د توت په ونه کښې وي او ډېر بدبویه وي.

**پوست** :- (پو +سْ + تْ) [پ، ص، مذ، وا، ج: پاستهٔ (مؤ، وا: پسته، ج: پستې)] نرم، ملائم، مېده، د سخت ضد.

متل: کانړے به پوست نهٔ شي، غلیم به دوست نهٔ شي.

ـــــ **کول**:- (اف) اص- پوستول، نرمول، مېده کول، پستول.

**پوست**:-(پو+سْ + تْ) [فا، اس، مذ، وا، ج: پوستُونه] (۱) څرمن، ژون، پوستکے (۲) ډوډه، د خشخاشو غوټې.

مشرف پـــه مـــرتبـه د همـــه اوست شو
که ظاهر ؤ، که باطن ؤ، مغز پوست شو   عبدالحمید

ـــــ **اړول**:- (اص) (۱) څرمن ویستل (۲) زیات وهل (۳) زیات ژغېدل زیاته وېنا کول.

ـــــ **ایستل**:- (اص) (۱) څـرمن یـا ژون ویسـتل، (۲) زیـات وهـل ډېـول

(۳) څهٔ ښیز په چا ډېر ګران څرګول.

ـــــ **ښیري لیدل**:- (اف) اص .(۱) څرمن بڅه لیدل (۲) څهٔ کار نهٔ کېدونکے ښکاربدل .

ـــــ **کښل**:- (اص) (۱) څرمن اوباسل (۲) ډېر زیات وهل ټکول (۳) څهٔ ښیز ډېر زیات ګران څرګول.

**پر پوست سکه وهل** :- (اف) اص .ډېر غریببدل ، خواربدل ، لوڅ لغړ کېدل ، د پولیِ پړک ته کښېناستل.

**په پوست ننوتل** :- (اص) (۱) په څرمن ننوتل (۲) د څهٔ مطلب حاصلولو دپاره د چا سره په ټګیِ برګیِ ځان خوږول ، چا ته د څهٔ راز حاصلولو دپاره ځان ورنزدې کول.

**تر پوست څڅول** :- (اف) اص .(۱) د څرمنې نه څڅول (۲) په چا خپله ښېګړه او نیکي زبادول او د هغهٔ شرمنده کول.

**تر پوست څڅېدل** :- (اف) اص.(۱) د څرمنې نه څڅېدل (۲) چاته شرمولو او د بدنام کولو دپاره د خپلو ښو یادګیرنه ورکولے کېدل

**د پوستو کول**:- (اف) اص.د څرمنې اغوستو جوګه کول ، ډېر زیات وهل ډبول ، په وهلو شین اچول.

**پوستک** :- (پو+سْ + تَ + کْ) [اف :پ (قاموس) اس ، مذ] د څرمنې ټوټه.

**پوستکے** :- (پو + سْ + تَ+ کے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پوستکي] پوست ، څرمن ، ژون.

کــه وماشي پـــه پـوستکي کښې جهان
ځایه وي هم به ئې ځاے کاندي سبحان حمید

ـــــ **وراچول**:- (اص) بیمار ته د ګډې ، بزې یا غوا څرمن وراغوستل

**پوستوالے** :- (پوست + وا + لَے) [پ ،اس ، مذ] نرموالے ، ملائمتوب، مېده توب، نرمي.

**پوستول** :- (پو + سْ + تَ + وُ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص ، مت] (۱) څرمن ویستل (۲) نرمول ، پستول ، مېده کول.

**پوستونګ** :- (پو + سْ + تَ +وُ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پوستونه.

**پوستونه**:- (پو+سْ +تَ +وُ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱) څرمن ویستنه ، پوستونګ (۲) نرمونه ، مېده کونه ، پستونه

**پوستوُونکے** :- (پو + سْ + تَ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ،مذ ، وا ، ج : پوستوُونکي (مؤ : پوستوُونکې)] (۱) څرمن ویستونکے (۲) پستوُونکے ، نرموُونکے ، مېده کوونکے.

**پوسته** :- (پو+ سْ+ تَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پوستې] ډوډه ، د خشخاشو غوټیِ ، پوست.

**پوستي** :- (پو+سْ + تيْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پوستیان] (۱) اپیمي ، افیمي ، افیون خوږونکے (۲) سست ، ناراسته ، بېکاره

کـه پوستي لـه پوستې واوړي ګوندې واوړي
د خوشـحال خـو جاروانـه نشـته لـه بنـکاره

**پوستېدل** :- (پو+ سْ + تې + دْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] (۱) څرمن اړېدل (۲) نرمېدل ، پستېدل ، مېده کېدل.

**پوستېدنګ** :- (پو + سْ + تې + دْ + نْ + ګْ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ـــــ پوستېدنه.

**پوستېدنه** :- (پو + سْ+ تې + دْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱) څرمن اړېدنه (۲) نرمېدنه ، پستېدنه ، مېده کېدنه.

**پوستېدونکے** :- (پو + سْ + تې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پوستېدُونکي] (۱) څرمن اړېدونکے (۲) نرمېدونکے ، پستېدونکے ، مېده کېدونکے.

**پوستین** :- (پو + سْ + تيْ + نْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پوستینونه] (۱) د څرمنې نه جوړ کوټ چې وړیِ پکښې وي.(۲) ګرم ښیز

**د بل په پوستینه کښې لوېدل** :- (اف) اص .(۱) د بل چا په پوستین کښې غورزېدل ، د بل په پوستینه ننوتل (۲) غیبت کول ، په چا پسې پشي شا ژغېدل.

**د بل په پوستینه ننوتل** :-(اف) اص.و ـــ د بل په پوستینه کښې لوېدل.

**پوسټ** :-(پو +سْ +ټْ) [انګ ، اس،مذ ،وا ،ج : پوسټُونه] (۱) ځاے ، څوکیِ .(۲) عهده ، ترقي (۳) ډاک.

ـــــ **کول**:- (اص) خط ډاکخانې ته اچول.

ـــــ **کېدل**:- (اص) خط ډاکخانې ته اچولے کېدل.

**پوسټ آفس** :- (پوسټ + آ + ف + سْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پوسټ آفسُونه] ډاکخانه ، د ډاک دفتر.

**پوسټر** :- (پو + سْ + ټَ + رْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج :پوسټرونه] اشتهار.

**پوسټ کارډ** :- (پوسټ + کا + رْ + ډْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا : ج : پوسټ کارډُونه] د خط لیکلو هغه سخت شان کاغذ چې د لفافې په مقابله کښې په نیم قیمت ملاوېږي.خو په دې کارډ لیکلے لیک څرګند وي .بند کېدے نهٔ شي.

**پوسټ ګرېجوایټ** :- (پوسټ + ګْ + رې + جُوْ + اې + ټْ) [انګ ، اس ، ص] د څوارلسم نه پاس ډګري.

**پوسټل** :- (پو + سْ + ټَ + لْ) [انګ ، ص] د ډاک سره تعلق لرونکے

**پوسټل آرډر** :- (پوسټل + آ + رْ + ډَ+ رْ) [انګ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: پوسټل آرډرُونه] د ډاکخانې په ذریعه د رقم لېږلو یو ارزانه او اسانه طریقه چې د مني آرډر په مقابله کښې ډېر کم خرڅ پرې راځي.

**پوسټل لا ئف انشورنس**:-(پوسټل + لا+ ئ + فْ + ا + نْ + شُوْ + رِ+ نْ+ سْ) [انګ ، اس ، مر] د ډاکخانې د بیمې څانګهٔ.

**پوسټ مارټم** :- (پوسټ + ما + رْ + ټَ+ مْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پوسټ مارټمونه] د قتل شوي بنیادم طبي معائنه.

**پوسټ ماسټر** :- (پوسټ + ما + سْ + ټَ+ رْ) [انګ ، اس ، ص ، مذ وا، ج: پوسټ ماسټران] د ډاکخانې مشر بابو.

**پوسټ ماسټر جنرل**:-(پوسټ ماسټر + جِ + نْ+ رَ+ لْ) [انګ ، اس ، ص ، مذ ] د ډاکخانو لوے عهدېدار.

**پوسټ مین** :- (پوست + مې +نْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا، ج : پوسټمېنان] ډاکي ، چټهي رسان ، د ډاک رسولو ذمه وار سړے

**پوسټنګ** :- (پـو + سْ + ټِ + نْ + ګْ) [انـګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پوسټنګونه] تقرري ، په څهٔ ځاے لګونه.

**پُوسکاوڼ** :- (پُو + سْ + کا + وَ + ڼْ) [پ ، اس ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا: پوسکاوڼه ، ج : پوسکاوڼي)] (۱) پسکاوڼ ، پُوسکي مار، پُوسکي ډمډم ، پسکن (۲) بې همته ، ناراسته ، بېکاره ، سست پست .

**پُوسکې** :- (پُوْ + سْ+ کَ+ يې) [پ ، اس ، مؤ] پسکه ، باد

**پُوسکے** :- (پُوْ + سْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس صو] پس پسے ، په غوږ کښې خبره ، پس پس.

**پُوسکي ډمډم** :- (پُوسکي + ډَ + مْ + ډَ+مْ) [پ (سو) اس ص ، مذ] و- پوسکاوڼ

**پُوسکي مار** :- (پُوْ + سْ + کيْ + ما + رْ) [پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ وا: پُوسکي ماره ، ج :پُوسکي مارې)] و ـــ پُوسکاوڼ

**پوسل** :- (پو + سَ + لْ) [پ مص مت] (۱) دلاسه کول ، تسله ورکول(۲) د

پمن خاروي غوړول ، (۳) پالل ، ساتل (۴) د بدن د څۀ حصې دپاسه رو رو لاس تېرول.

**پوسلل** :- (پو + سْ + لَ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] (۱) ښکلے کول ، ډولے کول ، ښائسته کول (۲) چت پټول ، د کوټې د چت دپاسه د پټولو دپاره مناسب څيزونه اچول.

**پوسللے** :- (پو + سْ + لْ + لَے) [ اف : پ (قاموس) مف مذ ، وا ، ج : پوسللي ، مؤ : پوسللې ) ] (۱) ښکلے کړے شوے ، ډولے کړے شوے ، ښائسته کړے شوے (۲) چت پټ کړے شوے.

**پوسلنه** :- (پو + سْ + لْ + نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص] (۱) ښکلے کونه ، ډولے کونه ، ښائسته کونه (۲) چت پټونه.

**پوسلوالے** :- (پو + سَ + لْ + وا + لَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ښکلے ، ښائست ، ډول.

**پوسلوُنکے** :- (پو + سَ + لْ + وُ + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) فا ع ، مذ ،وا ،ج: پوسلوُنکي (مؤ : پوسلونکې ) ] (۱) ښکلا ورکوُونکے ښائسته کوونکے ، ډولے کوونکے (۲) د کوټې چت پټوُونکے

**پوسلے** :-(پو + سْ + لَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پوسلي (مؤ : پوسلې)] (۱) دلاسه کړے ، (۲) پمن يا خارښتي څاروے غوړ کړے (۳) ساتلے ، پاللے (۴) د بدن په څۀ حصه رو رو لاس وهلے شوے.

**پوسن** :- (پُوْ + سَ + نْ) [ پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پُوسنه ، ج : پوسنې)] (۱) پسکاوڼ ، پسکن ، پُوسے (۲) کم عقل ، ناپوهه (۳) دروغژن ، ډوزې مار ، (۴) ډارن ، يرندُوکے.

**پوسنه** :- (پو + سْ + نَه) [ پ ، حمص] (۱) دلاسه کونه ، تسله ورکونه (۲) پمن او خارښتي څاروے غوړونه (۳) پالنه ، ساتنه (۴) د بدن په څۀ حصه رو رو لاس تېرَونه.

**پوسونکے** :- (پو + سُوْ + نْ + کَے) [ پ ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پوسوُنکي ، (مؤ : پوسوُنکې ) ] (۱) دلاسه کوونکے ، تسله ورکوونکے ، (۲) پمن او خارښتي څناور غوړوونکے ، (۳) پالونکے ، ساتونکے ، (۴) د بدن په څۀ حصه رو رو لاس وهونکے.

**پُوسه** :- (پُوْ + سَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پوسې ] د شنې نوې ونې مېوه چې مېده کړے شي او د خوراک په ډول خوړل کېږي.

**پُوسه** :- (پُوْ + سَه) [ پ (گن) اس ، مؤ ، وا ، ج : پُوسې ] د غوا ، مېښې سوټه

**پوسۀ** :- (پو + سَۀ) [ پ (ب، خ) اس ، مذ ، وا ، ج : پوسُونه ] پسۀ

**پوسه** :- (پو + سه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پوسې ] پوڅه ، پوګ

**پوسه** :- (پو + سَه) [ پ (سو) اس ، مؤ ] د واؤرې پوڅه.

**پوسۍ** :- (پو + سَ + يَۍ) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ] پوڅۍ ، د غوړ پوڅکۍ.

**پُوسے** :- (پُوْ + سَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پُوسي (مؤ: پوسۍ )] و ـــــ پُوسن

**پوش** :- (پو + شْ) [ پ (گن) اس ، مذ ، وا ، ج : پوشونه] جوړه ، قميص ، پرتوګ

**پوش** :- (پو + شْ) [ فا ، اس ، صو] لرې شه ، هغه خوا شه ، دُورې شه ، بېرته شه

**پوشا پوش** :-(پو + شا + پو + شْ) [ پ ، اس ، صو ] لرې شه ، بچ شه، هغه خوا شه ، اوازونه ، پوش پوش.

ډېــر د بـاد سوارۀ په خيال له ماتېرېږي
همېشه په دا بازار کښې پوشاپوش دے خوشحال خان

**پوشاک** :- (پو + شا+ کْ) [ فا ،اس ، مذ ، وا ، ج : پوساکونه ] جامه کالے ، لباس ، پوښاک ،نمري ، نوري.

نن سپېره په خاورو ډکه خولۀ بهتر دي
چې اخر مې دا خوراک دے دا پوشاک رحمٰن بابا

**پوش پوش** :- (پو + شْ + پو + شْ) [ پ ، اس صو ] و ـــ پوشا پوش

**پوشل** :-(پو + شَ + لْ) [ پ ، تر ، مص مت] پټول ، په راز کښې ساتل

فاش ئې ما وته کړه واړه
چې رازونـــه ؤ پــُوشلي خوشحال خان

**پوشيده** :- (پو + شيْ + دَه) [ فا ، ص ] پټ ، په پړده کښې ، غېب

**پوښ** :- (پو + شْ يا پو + خ ) [ اف :پ (قاموس) اس، مذ ، وا ،ج : پوښونه ] (۱) غـــلاف ، خلتـــه ، غلېـــب (۲) جامـــه ، لبـــاس ، (۳) د نـــاوې مخصوصه جوړه

ـــــ **نيول**:- (اف )اص. (۱) جامه ورکول (۲) ناوې تـه دوادۀ جوړه او جهېز ورکول (۳) غلاف ورکول ، خلته يا غلېب ورکول.

**پوښاک** :- (پو + شا + کْ + يا پو + خا + کْ [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پوښاکونه ] و ـــــ پوشاک.

**پوښتل**:-(پو+ شْ+تَ + لْ يا پو + خ + تَ + لْ) [ پ ، مص ] (۱) تپوس کول ، پوښتنه کول ، حال احوال معلومول (۲) د سوال جواب غوښتل.

چې مې نۀ پوښتي له حاله يار هرګز
هېڅ زما له لاس نـــۀ شي کار هرګز معزالله

**پوښتلے** :- (پو + شْ + تْ + لَے يا پو + خْ + تْ + لَے) [ پ ، مف ، مذ ،وا ، ج : پوښتلي (مؤ : پوښتلې) ] (۱) تپوس کړے شوے ، (۲) دسوال جواب غوښتلے شوے.

**پوښتن پاڼه** :- (پو + شْ + تَ + نْ + يا پو+ خْ + تَ + نْ + پا + ڼَه) [اف : پ اس ، مؤ ، وا ، ج : پوښتن پاڼې ] سمن ، د عدالت نه جاري شوے هغه کاغذ چې دپېشۍ تاريخ پکښې ليکلے وي.

**پوښتنه** :- (پو + شْ + تْ + نَه يا پو+ خْ + تْ + نه ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ج: پوښتنې ] (۱) تپوس ، حال معلومونه (۲) د سوال جواب غوښتنه (۳) د رنځور تپوس ، بيمار پُرسي.

نـــۀ پـوښتنه د احوال کا
د په حال دې خبر دار وي معزالله

ـــــ **کـول**:- (اص ) (۱) تپوس کول ، حال معلومول (۲) د سوال جواب غوښتل (۳) د رنځور تپوس کول.

**پوښتنې ته تلل** :- (اص) د بيمار تپوس ته تلل ، د رنځور بيمار پرسي کول

**پوښتول** :- (پُو+ شْ + يا پُو + خْ+ تْ + وْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) اس مذ ] د کوټې لوے تير.

**پوښتونکے** :- (پو + شْ + تُوْ + نْ + کَے يا پو+ خْ + تُوْ + نْ + کَے) [ پ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پوښتوُنکي (مؤ : پوښتونکې) ] (۱) تپوس کوُونکے ، حال معلوموُونکے ، (۲) د سوال جواب غوښتونکے

**پوښته** :- (پو + شْ + تَه يا پو + خْ + تَـه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ، وا ، ج: پوښتې ] و ـــــ پُښته.

**پُوښتۍ** :- (پُـو + شْ + تَ + يَۍ يـا پُـو + خْ + تَ + يَۍ) [ پ ، اس ، مـؤ] (۱) د سينې د پنجرې اډوکي (۲) د زناناؤ د سر د کونځو جوړولو يوه نمونه چې پړې پړې ئې وُغړي (۳) پُشت ، نسل ، خېل.

ـــــ **پښتۍ کېدل**:- (اص) پُوښتۍ راوتل ، پوښتۍ ښکاره کېدل.

ـــــ **راوتل**:- (اص) پوښتۍ ښکاره کېدل ، ډېر زيات کمزورے او مانده کېدل ، خوارېدل ، ډنګرېدل ، پوښتۍ پوښتۍ کېدل.

ـــــ **ريز مريز کول**:- (اص) ډېر زيات وهل ډبول ، په وهلو وهلو د بُوسو سخے جوړول.

ـــــ **ښکاره کېدل**:- (اص) و ـــــ پوښتۍ راوتل.

ـــــ **ماتول**:-(اص) د سينې د پنجرې اډوکي ماتول، ډېر زيات وهل ډبول

ـــــ **ماتېدل**:- (اص) په را غورزېدو يا وهلے کېدو د چا پوښتۍ ماتېدل
ـــــ **نيول**:-(اص) د حېرانتيا او خندا په وخت په لاسونو خپلې پوښتۍ نيول۔
ـــــ **ورتول**:- (اص) د ګډ پوښتۍ په اور نيول او د خوراک دپاره تيارول
**پر پُوښتۍ درېدل** :- (اف) اص۔ ډېر کمزورے کېدل۔
**پوښتېدل** :- (پو + ښْ + تېِ + دْ + لْ يا پو + خْ + تېِ + دْ + لْ) [پ ، مص لا] (۱) تپوس کېدل ، پوښتنه کېدل (۲) د سوال جواب غوښتلے کېدل۔
**پوښتېدلے** :- (پو + ښْ + تېِ + دْ + لَے يا پو + خْ + تېِ + دْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پوښتېدلي (مؤ : پوښتېدلې)] (۱) تپوس کړے شوے (۲) د سوال جواب غوښتلے شوے۔
**پوښتېدنګ** :- (پو + ښْ + تېِ + دَ+ نْګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و - پوښتېدنه
**پوښتېدنه** :- (پو + ښْ + تېِ + دْ + نَه يا پو + خْ + تېِ + دْ + نَه) [پ ، حمص] پوښتېدنګ ، پوښتېدۀ ، تپوس کونه۔
**پوښتېدُونکے** :-(پو +ښْ +تېِ +دُوْ + نْ + کَے يا پو + خْ + تېِ + دُوْ + نْ + کَے) [پ، مف، مذ ، وا ، ج: پوښتېدونکي (مؤ: پوښتېدونکې)] (۱) تپوس کېدونکے۔(۲) د سوال جواب غوښتلے کېدونکے۔
**پوښتېدۀ** :-(پو + ښْ + تېِ + دۀ يا + پو + خْ +تېِ + دۀ) [پ ، حمص] و - پوښتېدنه۔
**پوښښ** :- (پو + ښَ + ښْ يا پو + خَ + خْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پوښښونه] د کوټې چت ، پوشش۔
**پوښل** :- (پو + ښَ +لْ يا پو + خَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] د کوټې چت پټول ، په چت باندې لرګي او پوزي اچول۔
ـــــ **کېدل**:- (اف) اص۔د کوټې چت پټولے کېدل۔
**پوښلے** :- (پو + ښْ + لَے يا پو + خْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پوښلي ، (مؤ : پوښلې)] (۱) د کوټې چت پټ کړے شوے۔(۲) پټ کړے شوے۔

نۀ د مېنکو پټېدۀ نۀ د عشق شته
په ازل ئې نۀ دے دا پردے پښلے خوشحال خان

**پوښنګ** :- (پو + ښَ + نْ + ګ يا پو + خَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پوښنه۔
**پوښنه** :- (پو + ښْ + نَه يا پو + خْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] د کوټې چت پټونه۔
**پوښُونکے** :- (پو + ښُو + نْ + کَے يا پو + خُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ،فا ع ، مذ ، وا ، ج : پوښونکي (مؤ : پوښونکې)] د کوټې چت پټوونکے ، کاريګر۔
**پوښه** :- (پو + ښَه يا پو + خَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هغه لرګے چې په اوار مېدان کښې نمونځ کوونکے ئې خپل مخ کښې ښخوي چې په شرع کښې ورته سُتره وائي۔
**پوغله** :- (پو + غْ + له) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پوغلې] د تازه پېدا شوي بچي نرم بول ، ډاسه ، پېغولے۔
**پوک** :- (پو + کْ) [پ (سو) اس ص ، مذ] (۱) پوګ ، پوګه ، بُوس ، (۲) دړ ، چې مېنځ ئې خالي وي ۔
**پُوکاره** :- (پُو + کا + رَه) [پ ، (ګن) اس ، مؤ ، وا ج : پوکارې] پوکې
ـــــ **ورکول**:- (ګن) اص ۔(۱) ډيوې ته پوکاره ورکول ، ډيوه مړه ول (۲) اور ته پوکاره ورکول ،. اور بلول ، اور تېزول ، (۳) ګرم څيز ته پُوکاره ورکول ، ګرم څيز يخول۔
**پوکاڼه** :- (پُوْ + کا + ڼه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پوکاڼې] (۱) پوکڼۍ ، پوکاڼۍ ، پوکڼاړۍ ، پونګړکه ، د باد ډبوزه ، (۲) خوپڼه ، حُباب ۔د اوبو هغه ګول کټوري شان چې د باران په وخت جوړېږي او ورکېږي۔ بړبوکۍ (۳) مثانه۔
**پوکاڼۍ** :- (پو + کا + ڼِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـ پوکاڼه۔
**پوکاڼۍ ډبره**:-(پوکاڼۍ + ډْ + بَ + رْه) [اف : پ (قاموس) اس ، مر مؤ] د مثانې کاڼے ، هغه کاڼے چې د تشو متيازو په ځاے کښې وي۔
**پوکړے** :- (پُو + کَ + ړْے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پُوکړي (مؤ : پُوکړې)] هغه څيز چې پُوکے ورکړے شوے وي۔
**پُوکل** :- (پُوْ + کْ + لْ) [پ ،مص مت] پُوکے ورکول ، پُوکاره ورکول هوا ورکول، پُوکول ، باد ورکول۔

د ناصح په نصيحت مې سوے زياتېږي
پـه پُوکل سره تازه شوم سکوريم سوے اخون ګدا

**پُوکڼاړي** :- (پُوْ + کْ + ڼا + ړِ+ يْ) [پ ، اس ، مؤ] و ـ وکاڼه۔
**پوکنول** :- (پُوْ + کْ + نَ +وْ + لْ) [پ (سو) مص مت] و ـــ پوړوهل۔
**پُوکنه** :- (پُوْ + کْ + نَه) [پ ،حمص] پوکونه ، پُوکے ورکونه ، پُوکاره ورکونه۔
**پُوکول** :- (پُوْ + کْ + وْ +ے لْ) [پ ، مص مت] و ـــ پُوکل
**پُوکونکے** :- (پُوْ + کْ + وْ + نْ + کَے) [پ فا ع ، مذ ،وا ، ج: پوکوُنکي (مؤ : پوکوُنکې)] پُوکے ورکوونکے ، پوکاره ورکوونکے ، باد ورکوونکے ، پُو کوونکے۔
**پوکونګ** :- (پُوْ + کْ + وْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و- پوکونه۔
**پوکونه** :- (پُوْ + کْ + وْ + نَه) [پ ، حمص] و ـــــ پُوکنه
**پُو کوُونکے** :- (پُوْ + کْ + وُوْ + نْ + کے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: پوکوونکي (مؤ : پُو کوونکې)] و ـــــ پُو کونکے۔
**پُوکے** :- (پُوْ + کَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پُوکي] (۱) پوکاره ، پف (۲) د پک يا پوګ اسم تصغير۔
**پُوکېدل** :- (پُوْ + کېِ + دْ + لْ) [پ ، مص لا] (۱) د ماشومانو په ژبه کښې سوځېدل (۲) پُوکے ورکېدل ، پوکاره ورکېدل۔
**پُوکېدنه** :- (پُوْ + کېِ + دْ +نَه) [پ ، حمص] (۱) سوځېدنه ، سونه ۔ (۲) پُوکے ورکېدنه ، پوکاره ورکېدنه۔
**پُوکېدُونکے** :- (پُوْ +کېِ + دُوْ + نْ + کے) [پ ، مف ، مذ ، وا ،ج : پوکېدونکي (مؤ : پوکېدونکې)] (۱) سوځېدونکي (۲) پوکے ورکېدونکے ، پوکاره ورکېدونکے۔
**پوګ** :- (پو+ ګْ) [پ ، اس ، مذ (مؤ ، وا : پوګه ، ج : پوګې)] و ـــ پوک
ـــــ **بکس**:- (اص) فُضله

پوګ بکس د جهالت هاله ترې بېل شي
هـر چې اوځي د کامل استاد تـر چانه مصري خان

**پوګه** :- (پو + ګَه) [اف : پ (قاموس) ص ، مؤ] و ـــــ پوک
**پُول** :- (پُوْ + لْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ،ج : پُولان ، پُولُونه] پل
**پُول** :- (پُو+ لْ) [پ ، اس ، مذ] پېسه

زۀ د عشق په ګنج توانګر يم که نور خلق
تـولـول د زرو مـال متـاع د پُوکل کا خوشحال خان

**پولاد** :- (پو + لا+ دْ) [پ ، فا : فولاد ، اس ، مذ] (۱) فولاد ، د اوسپنې سخت شکل ، (۲) د زړې زمانې د سړو نوم ، لکه : اميرپولاد ۔
**پولادي** :- (پو + لا+ دِيْ) [پ ، ص] فولادي ، د پولاد نه جوړ، مضبوط ، ټينګ ، سخت

پولادي زغره ئې واغوسته انجور سه
پـه دښمن ئې لشکر لرې کوژه ولې ؤ د مروتو کسرونه

**پُولالېن** :- (پُوْ + لالې + نْ) [پ (سو) اس ، مذ] و ـــــ پلالېن

**پُولاؤ** :- (پُوْ+ لاؤ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پُولاوُونه] و ـــــ پُلاؤ

که اوګره د بتهو شته په شملو سپينه
د مغلو پــولاؤ پاتې ډېر پرې ډک يم خوشحال خان

**پُول پوښ** :- (پُوْ + لْ + پو+ شْ يا پـو + خْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] د کاريز يا نهر دپاسه چت.

**پُول پُولک** :- (پُو + لْ + پُوْ + لَ + کْ) [پ ، اس ، مذ ] د اُوبو يـو تـريخ بـوټے چې د ولـو او نهرونـو پـه غـاړه کښـېږي .پـاڼې ئې د ځرمنې د مـرض دپاره استعمالېږي.

که عـالم راته کن تاؤ کا غم مې نشته
پـــه رښتيا ويل د ډېرو پُول پولک يم خوشحال خان

**پولټري فارم** :- (پـو +لْ + ټْ + رِيْ+ فـا + رَ + مْ) [انګ ، اس ، مـر ، مـذ ، وا ، ج : پولټري فارمونه] د چرګو ساتلو ځاے

**پولټيکل** :- (پُوْ + لْ + ټِيْ + کَ + لْ) [پ (عا) انګ ، پوليټيکـل ، اس مـذ ، وا ، ج : پــولټيکلان] (۱) پُولټيکـل ايجنـټ ، د ايجنسـۍ د انتظـام لوے افسر (۲) هوښيار ، چالاک ، پوهه

**پولټيکــل ايجنــټ** :- (پولټيکــل + اې + جَ + نْ + ټْ) [پ (عــا) انــګ ، پوليټيکل ايجنټ ، اس مذ ، وا ، ج : پولټيکل ايجنټان] پولټيکـل ، د ايجنسۍ د کار چلولو او انتظام کولو سرکاري لوے عهدېدار .

**پــولټيکلي** :- (پُــو + لْ + ټِـيْ + کَ + لِـيْ) [پ (عــا) اس ، ص ، مـؤ ، وا ، ج: پوليټکلۍ] (۱) د پولټيکـل محکمـه ، د ايجنسۍ د انتظام چلولـو سرکاري محکمه (۲) هوښياري ، چالاکي

**پُولس** :-(پُوْ + لْ + سْ) [پ ، انګ ، پوليس ، اس ، مذ] پـوليس ، د امـن و امان قائم ساتلو او د ورانکارو خلکو د ګرفتارولو محکمه.

**پـولس چـوکي** :- (پُـولس + چـو+ کـيْ) [پ ، اس ، مـر، مـؤ ، وا ، ج: پـولس چوکيانې] هغه ځاے چې پُولس پکښې ديره کېږي.ورکوټې تانه.

**پُولسي** :-(پُوْ+ لَ +سِيْ) [پ ،اس ، مذ ، وا ، ج: پولسيان] د پولس سپاهي

**پولـک** :- (پُـوْ + لَ + کْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] هغـه مـېخ چـې پـه کُنده کښې ئې دپالې د ټينګولو دپاره ورکوي.

**پُولکے** :- (پُوْ + لْ + کَے) [اف : پ (قـاموس) اس، مـذ ، وا ، ج : پُـولکي] پـه تنور پخه شوې د غنمو ډوډۍ.

**پُولکے** :- (پُوْ + لْ + کَے) [پ (ګـن) اس ، مـذ ، وا ، ج : پُـولکي] د غنمـو وړه شان ډوډۍ

**پولنګ** :- (پو +لِ + نْ + ګْ) [انګ ، اس ، مذ] انتخاب ، ووټُونه

**پولنګ افيسر** :- (پولنـګ + ا + فِيْ + سَ + رْ) [انګ ، اس ، مـر ، مـذ وا ، ج : پولنګ افيسران (مؤ ، وا: پولنګ افيسره ، ج: پولنـګ افيسـرې) ] د ووټونو د انتظام کولو ذمه وار عهده دار.

**پولنګ سټېشــن** :-(پولنــګ + سْ + ټې + شَ + نْ) [انـګ ، اس ، مـر ، مـذ ، وا ، ج : پولنـګ سټېشنونه ] هغه ځاے چرته چې ووټونه اچولے شي.

**پولـو** :- (پـو + لـو) [انـګ ، اس ، مـذ] چوګـان ، هغـه لوبـه چـې پـه اسـونو سوارۀ لوبغاړي ډنډې په لاس غُنډسکې د يو بل ګول ته رسوي.

**پُولـه** :- (پُـوْ +لَـه) [پ ، ه : پُهـلا ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پُـولې] (۱) ورتـۀ ، جوار (۲) تنٻاکه.

ـــــ **پوله دربېدل**:- (اف) اص.تنٻاکه کېدل.

**پُوله** :- (پُوْ + لَه) [پ ،اس ، مؤ ، وا ، ج: پُولې] بريد ، حدبندي ،

سيند زما د اوښو اوواهۀ موج هومره
چې ئې وار نۀ کړۀ زمـــا د صــبر پُوله معزالله خان

ـــــ **ايښودل**:- (اص) پوله کښېښودل ، بريد کښېښودل ، حد بندي کول

ـــــ **تورول**:- (اص) شولګره مزکه چې هر کله د شولو د فصل د نهـل دپـاره تيـاره کـړے شـي .نـو د منړکـانو د سُوړو بنـدولو دپـاره پـه پُولـه ختـه واچولے شي.دې کار ته پوله تورول وائي.

ـــــ **جوړول**:- (اص) بريد جوړول ، حد راکښل ، پوله راکښـل.

ـــــ **راکښل**:- (اص) و ـــــ پوله جوړول.

ـــــ **کول**:- (اص) د يو بل نه ځان ساتل ، څنګ کول.

ـــــ **کښېښودل**:- (اص) و ـــــ پُوله ايښودل.

ـــــ **ماتول**:- (اص) بريد ماتول ، بريد ړنګول.

ـــــ **ماتېدل**:- (اص) (۱) د سېلاب په وجه د مزکې بريد يا پُوله وړلے کېدل (۲) تيرِه ماتېدل ، بندېز ختمېدل.

ـــــ **ورانول**:- (اص ) پُوله ړنګول ، بريد وهل.

ـــــ **وهل**:- (اص) (۱) چاتـه بريـد وروهـل ، د چـا پـه حـد ور اوړېـدل (۲) د شولګرې مزکې پُوله نرے کول.

**په پُوله تلل** :- (اص ) (۱) پـه احتيـاط تلـل (۲) پـه چـا بلوسـه کـول ، پـه پُولـه تېرېدل.

**په پُوله تېرېدل**:- (اص ) و ـــــ په پُوله تلل.

**پُولې پُولې** :- (اص ) (۱) بريـد بريـد ، لـټ لـټ ، هغـه مزکـه چـې ځـاے پـه ځاےپولې پکښې جوړې شوي وي (۲) د وريځې کرښې کرښې

**پوله** :- (پو + لَه) [پ ، ه : پهولا ، اس ، مؤ ] د سترګې ګل ، اوره

**پُولۍ** :- (پُـوْ + لْ + يَـۍ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] (۱) د غنمـو ګېډۍ (۲) اوچ واښهٔ (۳) تنٻاکه.

**پُــولۍ** :- (پُــوْ + لَ + يَــۍ) [پ ، اس ، مــؤ] (۱) د جــوارو وريتــه نينــه ، (۲) تنٻاکه

ـــــ **په ډانګ را اړول**:- (اص) (۱) ډېر غريب کېـدل ، دانـې دانـې تـه موتـازه کېدل ، (۲) ډېر شوم کېدل.

**پښې پُولۍ پُولۍ کېدل** :- (اص ) پښـې تنٻاکې کېـدل ، د چـا پـه تـلاش کښـې ډېر سرګردانه ګرځېدل.

**په زړۀ پولۍ اودرېدل** :- (اص ) پـه زړۀ تنٻاکې راختـل ، زړۀ تنٻاکې کېـدل ، ډېر غمژن کېدل يا کړېدل .

**د پولۍ پړق ته کښېناستل** :- (اص ) ډېر غريب کېدل ، هېڅ نۀ لرل

**پولۍ** :- (پو +لَ + يْ) [پ (سو) اس ، مؤ] (۱) د غنو ګېډۍ (۲) د زنانـاؤ د وېښتو ړمنځ کولو نه پس د ختلو شوؤ ويښتو ګُچه.

**پَولے** :- (پَـو + لَے) [پ (ب، خ) اس ، مـذ ، وا ، ج : پـولي] پـاولي ، جـولا ، کپړه اودونکے.

**پولَے** :- (پـو + لَـے) [پ ، (ب،خ + ګـن) اس ، مـذ ، وا ،ج : پـولي] (۱) د مېچنې يا تېغنې صفا کولو کپړه (۲) د غنو يا وښو ګېډۍ.

**پولَے ځتـل**:- (ب،خ) اص، اروا اوړے کېدل، لالـچ کـول خوشـامنده کـول.سپې توب کول.

**پولې څېولې** :- (پو + لَے + ثْسَ + پو + لَے) [پ (مـر) اس، مـذ] د ماشـومانو لوبه چې په يوه غُنډه دايره کښې کښېني او وار پـه وار د يـو بـل شـاته ځادر کښېږدي.

**پُولې لېن** :- (پُوْ + لې + لې + نْ) [پ (سو) اس ،مذ] و ـــــ پلالېن

**پُون** :- (پُوْ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس،مذ] پم ، خارش ، خارښت

**پُـونبړۍ** :- (پُـوْ + نْ + بْ + ړْ + يَـۍ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ] (۱) د پُنبې پـه شـان هغـه څيـز چـې د ځنـو بوټـو پـه بـېخ پـورې لګېـدلے وي (۲) سپک ، هلکه څيز.

**پُونج** :- (پُوْ + نْ + چْ) [ اس ، معر ، مذ ] پونچهـ ، پـه کشـمیر کښـې د یـو ځـاے نوم.

**پونچي** :- (پو + نْ + چَ + یَی) [ پ (گن) اس، مـؤ ] د سپینو زرو نـه جـوړې هغه دانې چې زنانه ئې په مزي کښې وېيي او د کالي په ډول ئې لاس کښې اچوي.

**پُونچې** :-(پُوْ +نْ +چَـ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پونچیـان (مـؤ : پـونچی) ] د پونچ اوسېدونکے ، د پونچ د سیمې سره تعلق لرونکے

**پونچي** :- (پُوْ + نْ + چيْ) [ پ ، اس ، مؤ] د پونچیانو ژبه.

**پُوندانه** :- (پُوْ + نْ + دا + نَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پوند انې ]و-پُندانه.

**پُونداني قیصه** :- (اص) اُوږده قیصه ، نۀ ختمېدونکې قیصه ، هسې د ساعت تېرې دپاره څۀ قیصه ، د ماشومانو نه د ځان خلاصولو دپاره بیا بیا یوه خبره تکرارونه.

**پُونـدغلے** :- (پُـوْ + نْ + دْ + غْ + لَـے) [ اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: پُوندغلي ] د ښپلی یا پېزار پُونده.

**پوندګلي** :- (پ+ وَ + نْ + دْ + گَ + لِيْ) [ پ (یوسف) اس ، ص ] گوجرتوب ، مال څرول.

**پُونـده** :- (پُـوْ + نْ + دَه) [ پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پُونـدې ] (۱) د پښـې روستی حصه چې غوښه ئې سخته وي. (۲) د ښپلی هغـه تسمه چې پېزار پرې مضبوط تړلے شي. (۳) د پېزار لاندې روستنی حصه (۴) د تُورې موټے.

که چغې دانې کوفته یا جوشېده شي
چـاؤدو پُـونـدو لـره ښۀ ده بکیانه    مصري خان

**ـــــ ورکول** :- (اص) د څۀ کار پخه اراده کول.

**اس پونده کول** :- (اص) اس زغلول ،

**پونـده** :- (پَ + وْ + نْ + دَه) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پونـدګان] کـوچے پاونده ، د افغانسـتان د سیمې هغـه پښتـانۀ چې پـه ژمـي کښـې د قـافلو پـه شـکل کښـې لانـدې مېـداني علاقې تـه راکوزېږي او اوړي کښې پاس غرئيزې علاقې ته کډې کوي.

**پونډ** :-(پو + نْ + ډْ) [ پ ، اس ، مذ] پنډ ، یـو قسم آتش گیـره مـاده چې د مالوچو او ځینې ونو د پاڼو او پوستکو نه بـه جوړولے شوه ، خپه لکه پونډ دے د اورته

د اُوبـۀ وتـه قـرطاس    خوشحال

**پونـډ** :- (پَـو + نْ + ډْ) [ انـگ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پونډونـه ] (۱) یـوه انګرېزي سکه چې شل شلګونه پکښې وي (۲) نیم سېر کچه وزن

**پُونډکه** :- (پُوْ + نْ + ډَ + که) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ] سابۀ ، سـاګ ، سبزي.

**پُونډی** :-(پُوْ + نْ + ډَ + یَی) [ پ (ظفر) اس ، مؤ] د پنډی پسته غوښه

**پُونس** :- (پُوْ + نْ سْ) [ پ ، اس ، مذ ] پُنس ، پینځۀ سوه.

پـونسو کالــه دور اوقــات گـرم د فرعون وۀ
ډوب شو د لښکر سره مونډوت زیلۍ پرېکړې    حافظ
الپوري

**پونګ** :- (پُوْ + نْ + ګْ) [ پ (ب،خ+گن) اس ، مذ] (۱) پخ ، پېداوښ اولاد ، (۲) د ملخانو بچ.

**ـــــ اچول** :- (اص) د ملخانو بچ ایستل.

**پونګ** :- (پُوْ + نْ + ګْ) [ پ (سو) اس ، صو ، مذ] د تیز اواز.

**ـــــ اچول** :- (سو) اص. باد پرېښول ، تیز اچول.

**پونګړکه** :- (پُوْ + نْ + گَ + ړْ + کَه) [ پ (شن) اس ، مؤ ، وا]    و- پوکانه

**پُونګـه** :- (پُـوْ + نْ + ګَـه) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] پانګـه ، پنګـه ، سرمایه ، موړي.

**پُونګی** :- (پُوْ + نْ + گَ + یَی) [ پ ، اس ، مؤ] (۱) د سُرنا هغه تُوتنی چې ژبـه پـرې کښېښـولے شـي (۲) غـرۀ کښـې هوارځـاے (۳) د منیـاري سامان د تجارت سامان

**پُونګے** :- (پُوْ + نْ + ګَے) [ پ (سو) اس ، ص ، مذ] تیز ، د ماشومانو بـاد ، پونګ.

**پُونګے** :-(پُوْ+نْ + گَـے) [ پ (ب، خ) اس،مذ ،وا ،ج : پونګي ] هغـه درُوزه ، کړکے یا راغونډ کړے کاغذ چې چرسیان د چرسو لُوګے پرې اخلي.

**پُونــــه** :- (پُـوْ + نَـه) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] (۱) اوبـــۀ خـــور (۲) نرے باران .

**ـــــ کول** :- (اف) اص. (۱) مزکه خړوبول ، پنه کول ، زمکې ته اوبۀ ورکول (۲) نرے چڼ کاؤ یا ترمکاؤ کول.

**ـــــ کېدل** :- (اف) اص (۱) اوبـۀ خور کېـدل ، مزکـه پنـه کېـدل (۲) نـرے باران کېدل، چڼ کاؤ کېدل.

**پونے** :-(پَ + وْ + نَے) [ پ (ب،خ) اس ، مذ ، وا ، ج : پوني ] پمنے ، پمنکے

**پُوني** :- (پُوْ + نِيْ) [پ (سو) اس ، مؤ] پُوږوهنه.

**پُوڼ** :- (پُوْ + ڼْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ] د پخوانی زمانې یو قسم بنډ بکر.

**پُوڼ** :- (پُوْ + ڼْ) [ اف : پ ، اس ، ص ، مذ ] ډډ ، ګوګ ، چې مېنځ ئې خالي وي

**پوڼاقه** :- (پُوْ + ڼا + قَه) [ پ (سو) اس ، مؤ ، وا ، ج : پوڼاقي ] د اور سوي تپاکه.

**پُوڼاکه** :- (پُوْ + ڼا + کَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـــ پُڼاکي

**پُوڼکـه** :- (پُـوْ + ڼْ + کَـه) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پـوڼکې] خُوپنه ، بربوکی ، حُباب.

**پوڼُول** :- (پُو + ڼُ + وْ + لْ) [ اف ، پ (قاموس) مص مت] (۱) د څۀ څیـز ډډ تشول ، ګوګول ، (۲) په زیات نصیحت یا په ډېرو خبرو د چا تنګول.

**پُوڼولے** :- (پُوْ + ڼْ + وَ + لَے) [ اف : پ (قـاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پوڼولي ، (مؤ : پوڼولې) ] (۱) ډډ کړے .مېنځ خالي کړے (۲) پـه خبرو تر پوزو راوستلے.

**پوڼونګ** :- (پُوْ + ڼَ + وْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـ پوڼوونه

**پوڼونه** :- (پُوْ + ڼُ + وْ + نَـه) [ اف: پ (قاموس) حمص] (۱) ډډونـه ، ګـوګ کونـه ، مېنځ تشـونه یـا خـالي کونـه (۲) پـه خبـرو یـا نصیحت کولـو تنګونه.

**پُوڼوونکے** :- (پُوْ + نْ + ڼَ + وُوْ + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس فا ع، مذ ، وا ، ج : پوڼـوُونکي (مـؤ : پوڼـوونکې) ] (۱) ډډوُونکـے ، ګـوګ کوونکے ، مېنځ تشوونکے یا خالي کوونکے (۲) په خبرو یـا نصیحت کولو تنګوونکے.

**پُوڼـه** :- (پُـوْ + ڼَـه) اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مـؤ] د اس رفتـار ، د اس مخصوص قدم.

**پوڼی** :- (پُو + ڼَ + یْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـــ پوړی

**پُـوڼی** :-(پُـو + ڼَ + ی) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] لېخـی ، پـوخـی ، د وربوهغه ګوچی چې د غښتلودپاره په لاس راخرخولے شوي وي.

**پُوڼے** :- (پُوْ + ڼْ + ے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــ پم

**پوڼېدل** :- (پُوْ + ڼَ + ې + دْ + لْ) [ پ ، مص لا] د ځناور په تومبی یا مـوږي پښې ټکول.

په خپل کور لکه شا خوږے خر خلۀ خشکه
د بــل کـــور کښې لکه اس په راتب پوڼي    خوشحال خان

**پوڼېـدل** :-(پُـوْ + ڼَ + ې + دْ + لْ) [ اف : پ (قـاموس) مـص لا] (۱) ډډېـدل ،

مېنځ تشېدل (۲) پـه ډېرو خبرو اورېدو تنګېدل (۳) د اس پـه مـوړي پښې ټکول ، خرمستي کول.

**پونبېدلے** :- (پُـوْ + نْ + يْ + دْ + لَـے) [ اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج: پونبېدلي (مؤ : پونبېدلې) ] (۱) ډډشوے ، مېنځ تش شـوے ، (۲) پـه ډېرو خبرو اورېدو تنګ شوے يا مغز خالي شوے

**پونبېدنګ** :- (پُوْ + نَ + يْ + دْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و - پونبېدنه .

**پُونبېدنه** :- (پُوْ + نَ + يْ + دْ + نَه) [ اف : پ (قـاموس) حمص] (۱) ډډېدنـه ، مغز خالي کېدنه ، پُونبېدنګ ، پونبېدۀ ، (۲) د څناورو په موړي پښې ټکونه ، خرمستي کونه.

**پونبېدُونکے** :- (پُـوْ + نَ + ي + دُوْ + نْ + کَـے) [ اف : پ (قـاموس) فـا ، مـذ ، وا ، ج: پونبېدونکي (مؤ :پونبېدونکې) ] (۱) ډډېدونکے مغز نه خالي کېـدونکے (۲) پـه مـوړي پښـې ټکـوونکے ، خرمسـتي کـوونکے (۳) رفتار کوونکے ، تلونکے.

**پُونبېدۀ** :- (پُ+وْ+نَ + ي + دۀ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـ پونبېدنه

**پووړه** :- (پْ + وو+ړه) [ اف: پ (قاموس) ص ، مؤ] پـواړه ، سـسته سـخا ، خيرنه ، خيچنه ښځه.

**پوول** :- (پو + وْ + لْ) [ پ ، مص مت ] ځرول.

**په خپل سرپوول**:-(اف) اص.ـ يو کار بغېر د چا د مدت نه پخپله کول

**پوولے** :- (پو +وْ + لَے) [پ، مف ، مذ ، و ، ج : پوولي (مؤ : پوولې)] ځرولے .

**پوونګ** :- (پو + وْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـ پوونه

**پوونه** :- (پو + وْ + نَه) [ پ ، حمص] ځرونه ، پوونګ

**پووُونکے** :- (پو + وُوْ + نْ + کَے) [ پ ، اس فا ع، مذ ، وا ، ج: پووُونکي (مؤ : پووُونکې) ] پووُونے ، ځروُونکے .

**پووُونے** :- (پو + وُوْ + نے) [ پ ، فاع ، مذ ، وا ، ج : پووُوني (مؤ : پووُونې ] و ـــــ پووُونکے.

**پـوه** :- (پـو + هْ) [ پ ، ص ، مـذ ، وا ، ج: پوهـان (مـؤ ، وا: پوهـه ، ج: پوهانې ، پوهې) ] پوئے ، پويه ، پوهه ، پوهند ، هوښيار ، عقلمند ، پوهېدُونکے.

هغه څوک چې د الف په توري پوه شو
نـــور په خُلۀ د نورو توريو شمار نۀ کا    خوشحال خان

**پوه** :- (پو + هْ) [ ه ، اس ] د پوه مياشت.

**پُوه** :- (پُ + وَه) [ اف : پ (قاموس) ص ، مؤ] اوته ، زيمناکه ، مزکه

**پوها** :- (پو + ها) [ پ ، کلمه ] پوهو ، د حېرانګۍ کلمه.

**پوهاند** :- (پو + ها ، نْ + دْ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ ، وا: پوهانده ، ج : پوهاندې) ] (۱) اُستاد (۲) پوهه ، عالم.

**پوهړ** :- (پُوْ + هَ + ړْ) [ پ ، اس ، ص مذ (مؤ ، وا: پوهړه ، ج: پوهړې)] کم عقل ساده بُوده ، ناپوهه ، بېکاره.

**پوهلنډے** :- (پو + هْ + لَ + نْ + ډَے) [ اف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا، ج : پوهلنډي ، (مؤ : پوهلنډۍ) ] کم عقل .

**پوهمن** :- (پو + هْ + مَ + نْ) [ اف : پ (قـاموس) فـا : بهمن ، اس ، مذ ، وا] پوهنيار ، پوهه ، هوښيار ، دانا .

**پوهنتـــون** :- (پـــو + هْ + نْ + تُـــوْ + نْ) [ اف : پ ، اس ، مـــذ ، وا ، ج : پوهنتونونه ] يونيورسټي ، جامعه ، دانشګاه.

**پوهنځـــائے** :- (پـــو + هَ + نْ + ځَـا + ئـــے) [ اف : پ ، اس ، مـــذ ، وا ، ج: پوهنځايُونه ] شُعبه ، فاکولته.

**پوهند** :- (پو + هْ + نْ + دْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ (مؤ: پوهنده)] پوهه ، هوښيار .

**پوهنه**:-(پو+هْ +نَه) [ پ ، اس ، مؤ ] هوښيارتيا ، پوهه ، هوښيارتوب

**پوهنيار** :- (پو + هَ + نْ + يا +رْ) [اف :پ (قاموس) اس، مذ ، وا ] وپوهمن

**پوهو** :- (پو + هو) [ پ، د تعجب کلمه ] و ـــــ پوها

خپل خويونه هر ګز نۀ پرېږدي د بدو
هر يـــو وائي پوهو خلق څۀ مردار شو    مصري خان

**پوهوتلے** :-(پو + هْ + وْ + تَ + لے) [ اف : پ (قاموس) مذ ] مفهوم ، مطلب.

**پوهـول** (پـو + هْ + وْ + لْ) [ پ ، مـص مـت] پويـول ، پـه مطلـب رسـول ، لارښودل.

مګر زۀ ئې چې ګويا په شاعرۍ کړم
پښتانـۀ پـوهـــول عـــزت تـعـال    خوشحال

**پوهولے** :- (پـو + هْ + وْ + لَـے) [ پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : پوهـولي (مـؤ : پوهوالے) ] پويولے ، په مطلب رسولے ، په لار سم کړے.

**پوهونګ**:-(پو + هْ + وْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و ـ پوهونه

**پوهونه** :- (پو + هْ + وْ + نَه) [ پ ، حمص] پوهونګ ، پويونه ، په لار سمونه ، په مطلب رسونه.

**پوهوُونکے** :- (پـو + هْ +وُوْ + نْ + کَـے) [ پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا: ج : پوهوُونکي (مؤ : پوهوونکې) ] پويوُونکے ، په مطلب رسوونکے

**پوهوهو** :- (پوهـو + هـو) [ پ، کلمـه ] د ډېـرې حېرانـۍ پـه وخـت دا کلمـه وئيلے شي.

**پوهه** :-(پو + هه) [ پ ، اس ، مذ] پوئے ، عقلمند ، هوښيار ، پوهېدونکے

پوهه هغه دے چې په ښو پسنده وي
چې بـدي پسنده کا کار مسخره وي    مصري خان

**پوهـه** :- (پـو + هَـه) [ پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پـوهې ] (۱) عقـل ، پويـه (۲) هوښياره ښځه

کـه پـه پوهـه کښـې دا نـا د زمـانې وي
د زړۀ غـم ئـې تـر هنکو کـچ د کـول کـا

خلائق په تفاوت سره پيدا وي
پـــوهې واړه نـۀ دي بـرابـرې    خوشحال

**پوهيالے** :- (پو + هْ + يا + لَـے) [ اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پوهيالي (مؤ: پوهيالۍ) ] هوښيار ، عقلمند ، پوهه

**پوهېدل** :- (پو + هې + دْ + لْ) [ پ ، مص لا] پويېدل ، خبرې تـه رسېدل ، په مطلب رسېدل.

**پوهېدلے** :- (پو + هې + دْ + لَـے) [ پ ، مف ، مـذ ، وا ، ج : پوهېدلي (مؤ : پوهېدلې) ] پوه شوے ، پويېدلے ، په مطلب رسېدلے.

**پوهېدنګ** :- (پو+ هې + دْ +نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص ] و -پوهېدنه

**پوهېدنه** :- (پـو + هـې + دْ + نَـه) [ پ ، حمص] پوهېـدنګ ، پويېدنـه ، پـه مطلب رسېدنه.

**پوهېـدُونکے** :- (پـــو + هـــې + دُوْ +نْ + کَـــے) [ پ ، مـــف ، مـــذ ، وا ، ج : پوهېـــدونکي (مـــؤ : پوهېـــدونکې) ] پويېـــدونکے ، پـــه مطلـــب پوهېدونکے ، په خبره رسېدونکے.

**پوئے** :- (پو + ئے) [ پ ، ص ، مذ] پوهه ، هوښيار .

**پوئټري** :- (پو+ ئې + ټْ + رِيْ) [ انګ ، اس ، مؤ ] (۱) شاعري (۲) د شعر و شاعرۍ کتاب.

**پويول** :- (پو + يْ + وْ + لْ) [ پ ،مص مت ] پوهول.

**پويولے** :- (پو + يْ +وَ + لَے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: پويـولي (مؤ : پويولې) ] پوهولے ، پوه کړے.

**پويونګ**:-(پو + يْ + وْ + نْ+ ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و ـ پويونه

**پویونه**:-(پو+يْ+وْ+نَه) [اف: پ (قاموس حمص] پویونګ، پوهونه.
**پویوُونکے** :- (پـو+يْ+وُوْ+نْ+کـے) [پ، اس فـا ع، مـذ، وا، ج: پویوُونکي (مؤ: پویوُونکي)] پوهوونکے.
**پویه** :- (پو+يه) [پ، اس، مؤ] پوهه
**پویه**:-(پو+يَه) [پ (ب،خ) اس، مؤ] د غرۀ په لمن کښې اواره مزکه
**پویېدل** :- (پو+يې+دْ+لْ) [اف: پ (قاموس) مف، مذ] پوهېدلے
**پویېدنه** :- (پو+يې+دْ+نه) [پ، حمص] پوهېدنه.
**پویېدُونکے** :- (پو+يې+دُوْ+نْ+کَے) [پ فا، مذ] پوهېدونکے
**په** :- (پَ+هْ) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] (۱) پهه، مرهم (۲) هغه کړک چې په مات ځاے تړلے شي، کبړ.
**په** :- (پَه) [پ، حرف] پر، باندې، پاسه، کښې، سره، لکه: "په اوبښ" "په سر" "په کور" او "په تُوره" وغېره.
ـــــ **اله اسانه**:- (اص) په اسانئ، په اسانتیا سره، سوکه.
ـــــ **توبو توبه گارول**:- (اص) څوک ډېر تنګول، په څۀ کار بې کچه زیات پښېمانول، تر پوزې راوستل.
ـــــ **تود ځائے پل کښښېښودل**:- (اص) نقصان او خطرې ته ځان نیول د جنګ ځاے ته ورتلل.
ـــــ **غرونـو سـر کېـدل**:- (مـح) (۱) لېـونے کېـدل (۲) ړتـاوکې وهـل (۳) ګستاخي کول
ـــــ **غلبیل کښې اوبۀ راؤړل**:- مح. نۀ کېدونکے کار کول، په نۀ کېدونکي کار ځان اخته کول، د زانګو نه کټورې غوښتل.
**پهاړ** :- (پَ+ها ړْ) [ه، اس، مذ] غر، روه

که منو ئې په پهاړ وه ډېره سیلئ
ددې پلارې وه مرکے اوشورېدلې     د مروتو کسرونه

**پهاړا** :- (پَ+ها+ړَا) [ه، اس، مؤ] د ضرب ګُرونه.
**پهاړي** :- (پَ+ها+ړِيْ) [ه، اس، مذ] د راګ یو قسم.
**په امتاداره** :- (په+اَ+مْ+تا+دا+رَه) [پ، ص] په طمعه، په اُمېد کښې.
**په اُورو کښې مالګه** :- (په+اُوْ+رو+کښې+ما+لْ+ګَه) [پ، ص] ډېر لږ لږ مقدار کښې.
**په بل اور تېل اچول** :- (پـه+بَ+لْ+او+رْ+تې+لْ+اَ+چَ+وُلْ) [پ، مح] په یوه جګړه کښې نور ورانے کول، جګړه تودول، جګړه زیاتول
**په پته** :- (په+پَ+ته) [پ، تر، ص] په غلا، چې څرګند نۀ وي.
**په پسې** :- (په+پْ+سې) [پ تر، ص] ورپسې، شاته، روستو، ترشا، جُخت
ـــــ **کول**:- (اص) (۱) ورپسې کول، ورپسې خوشي کول (۲) لړګي په اور پسې کول، په لړګو اور بلول.
ـــــ **کېدل**:- (اص) (۱) ورپسې کېدل، ورپسې خوشے کېدل (۲) لړګي په اور پسې کېدل، په لړګو اور بلېدل.
**په پوري** :- (په+پو+رې) [پ تر، ص] (۱) ورپورې، ورسره، جُخت، (۲) بله غاړه، پورې خوا (۳) په امان کښې، په سیمه
**په پوهېدل** :- (په+پو+هې+دْ+لْ) [پ، مص لا] پر پوهېدل، مطلب ته رسېدل، په خبره رسېدل، په فکر کښې راتلل.
**په تورو ویل** :- (په+تو+رو+وْ+يْ+لْ) [پ، مص مت] په ټکو ویل، په هجو ویل، په جوړ ویل، په پېزې کول.
**په تېره بیا** :- (په+تې+رَه+بْ+يا) [اف: پ (قاموس) ص] خاص طور سره، خصوصاً په تېره تېره.
**په تېره تېره** :- (په+تې+رَه+تې+رَه) [پ، ص] و ـــ په تېره بیا

**په ټوپو**:-(په+ټو+پو) [پ، تر، ص] په ترپکو، په منډو، په تېزئ
ـــــ **تلل**:- (اص) په منډه تلل، په ترپکو تلل، ډېر تېز تلل.
ـــــ **راتلل**:- (اص) په ترپکو راتلل، په منډه راتلل، زیات تېز راتلل
**په څنګ** :- (پـه+څَـ+نْ+ګْ) [پ، ص] (۱) په اړخ، په څرمـه (۲) یـو ډډې ته، یو خوا ته.
**په څېر** :- (په+څْـې+رْ) [پ، ص] په شان، په رنګ، غوندې
**په خپله** :- (په+خْ+پْ+لَه) [پ، ص] پخپله، خپله، په ځان ځاني
ـــــ **کول**:- (اص) ځا ني کول، څۀکار په خپل ځان کول، خپله کول
**په خولۀ** :- (پـه+خو+لـۀ) [پ تر ص] (۱) په ژبه، په وینا (۲) په خولـۀ کښې (۳) زباني، هسې، په وینا.
ـــــ **کول**:- (اص) خولې ته اچول، خوړل.
**په دې څېر** :- (په+دې+څْـې+رْ) [پ تر، ص] په دا رنګ، په دا شان، داسې، دغه شان.
**په ډانګ ویل** :- (په+ډا+نْ+ګْ+وَ+يْ+لْ) [پ، مص] په ډګر ویل، صفا ویل، په سپین مېدان ویل، په ډاګه ویل، صفا او څرګند ویل.
**په ډګر ویل** :- (په+ډْ+ګْ+رْ+وَ+يْ+لْ) [اف: پ (قاموس) مص مت] و ـــــ په ډانګ ویل.
**پهـر**:-(پَ+هْ+رْ) [ه، اس، مذ، وا، ج: پهرُونه] پـار، ګـړئ، د دریـو ګېنټو برابر وخت، د ورځې څلورمه او د شپې ورځې اتمه برخه.

د وصـال ورځې هلکې تـــر ګړئ دي
بې لیدلو میاشتې کال شوې ګړئ پهر خوشحال خان

**پهره** :- (پَ+هْ+رَه) [ه، اس، مؤ، وا، ج: پهرې] (۱) څوکئ، حفاظت، نګراني، څارنه (۲) ګارډ (۳) ګشت.
ـــــ **بدلول**:- (اص) (۱) ګارډ بدلول (۲) ګشت بدلول.
ـــــ **کښېناستل**:- (اص) پهره لګېدل، حفاظتي دسته مقررېدل.
ـــــ **کول**:- (اص) حفاظت کول، څوکیداري کول، څارنه کول.
ـــــ **لګول**:- (اص) د حفاظت دپاره ګارډ مقررول.
ـــــ **لګېدل**:- (اص) و ـــــ پهره کښېناستل.
**پهـره دار** :- (پهـره+دا+رْ) [فـا، اس، فـا ع، مـذ، وا، ج: پهـره داران (مؤ، وا: پهره دار، ج: پهره دارې)] پېره دار، څوکیـدار څارُونکے، خیال ساتُونکے، نګراني کوُونکے.

هر نفس یو غنیمت دے
پهـره دار اوســه د ســاه     خوشحال

**پهره داري** :- (پهره+دا+رِيْ) [اس، مر، مؤ] څوکیداري، څارنه خیال ساتنه.
**پهړ** :- (پَ+هَ+ړْ) [اف: پ اس، ص، مذ] هغه اس چې په خولې کښې خست وي.
**پهړه** :- (پَ+هْ+ړَه) [اس، مؤ، وا] د جوګیانو لنډه امسا، پهوړئ پهوړه.

کند کچکول پهړه ئې واخسته ګدائے شۀ
ســر ګشتــه ئې پــه هر در په هر دیار کړ مصري خان

**پهړه** :- (پَ+هْ+رَه) [اس، مؤ، وا] دملنګانو د غاړې امېل.

ستا په مینه کښې ملنګ پهړه په غاړه
راتــه پـــه دې جهان تـــر بادشاهئ (مصري خان)

**پهـرو** :- (پَ+هْ+رُوْ) [پ، اس، مـذ، وا، ج: پهروګـان] پـاړو، هغـه سړے چې ماران نیسي، پاروګر.

له زلفینو به دې چرې لاس د کاړم
پهـرو نــۀ کا لـــه مارانو احتراز     مصري خان

**په زړۀ** :- (په+زْ+ړۀ) [پ، ص] (۱) په یاد، په زړۀ کښې، زوت (۲) په

زړیه ، په رښتیا۔
ـــــ **کول**:- (اص) په یادول ، زوتول۔
ـــــ **کېدل**:- (اص) یادېدل۔
**په زړۀ پورې** :- (په زړۀ + پو + رې) [ پ ، تر ، ص ] (۱) زړۀ ته نزدې ، ګران ، خوښ (۲) یاد ، په زړۀ کښې۔
که تور غروني مو تر مېنځ دي
راتـــه ښـــکاري په زړۀ پورې ظفر کاکا خېل
ـــــ **کول**:- (اص) خوښول ، زړۀ ته نزدې کول۔
ـــــ **کېدل**:- (اص) خوښېدل ، زړۀ ته نزدې کېدل ، زړۀ ته پرېوتل۔
**په زړۀ کونه**:-(په زړۀ + کُ + وُ + نَه) [ پ تر ، حمص] یادونه ، زوتوُنه
**په زیاته** :- (په + زْ + یا + تَه) [ پ تر ، مؤ ] ددې نه علاوه۔
**پـه سـتنه** :- (پـه + سْ +تْ + نَـه) [ پ ، ص] (۱) واپـس ، بېرتـه ، پسـتنه (۲) (ب،خ) قې ، اُلټی ، باکی۔
ـــــ **کـول**:- (اص) (۱) واپس کـول ، بېرتـه لېږل (۲) ب،خ ــ اُلټی کـول ، باکی کول ۔
ـــــ **کېدل**:- (اص) واپس کېدل ، بېرته کېدل۔
**په سر کښې** :- (په + سَ + رْ + کښې) [پ، ص] په شروع کښې، ړومبے لُمړے۔
**پـه سره ور** :- (پـه + سَ + رَه + وَ + رْ) [ اف : پ (سینه) ص] چې سېورے ئې لوے وي۔بَردار ، فراخ ، ارت۔
**پـه سینه ورګډېدل** :- (پـه + سي + نْ + دْ + وَ + رْ + ګَ + ډې + دْ + لْ) [پ ، مص ] اور اوبو اخستل ، اوتر کېدل ، د څۀ واقعې له کبله پـه ځان نۀ پوهېدل ، د څۀ څيز دپاره زيات لېواله کېدل۔
**په شان** :- (په + شا + نْ + [ پ ، ص ] په رنګ ، غوندې ، هـم هغـه رنګ ، شانتې۔
**په غاړه** :- (په + غا + ړَه) [ پ ، ص ] (۱) په ذمـه ، پـر پـورې ، پـه حوالـه پـه ذمه واری (۲) په غاړه کښې اغوستے (۳) په کناره ، په څنګ په څنډه
**په غرۀ** :-(پـــه+ غْ +رَ ۀ) [پ، ص](۱) په غرونو، په غرۀ کښې (۲) په ښدیا ۔
ـــــ **په سمه ګرځېدل**:- (اص) (۱) پـه غرونـو او مېـرو ګرځېـدل (۲) سـبلانے کېدل (۳) لېونے کېدل۔
**پـه کـار**:-(پـه +کا+رْ) [ پ ، ص ] (۱) پـه کـار راتلوُنے ، فائده مـن (۲) چې چاته ضرر پېښ وي۔
ـــــ **کول**:- (اص) (۱) په کار راوستل (۲) خوښول (۳) په کار لګول۔
ـــــ **لګېدل**:- (اص) (۱) په کارېدل ، په کار راتلل (۲) خوښېدل
**په کارېدل** :- (په + کا + رې + دْ + لْ) [پ، مص لا] و ــ په کار کېدل
**په کارېدونکے** :- (په + کا +رې + دُو + نْ +کَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: پـه کارېـدونکي (مـؤ : پـه کارېـدونکې) ] (۱) پـه کـار راتلـونکے (۲) خوښېدونکے
**په کډه**:-(په + کَ + ډَه) [ پ،ص ] په کُوچ ، په سفر،سره د کور د سامانه۔
ـــــ **تلل**:- (اص) کوچ کول ، د یو ځاے نه بل ځاے ته د سفر په نیت سره د سامانه تلل۔
ـــــ **راتلل**:- (اص) سره د سامانه او بال بچ یو ځاے ته راتلل۔
**په ګڼه** :- (په +ګَ +ڼَه) [ پ ، ص] په شریکه ، په جمع ، په یو ځاے ، په ډېر تنه
**پـه لاس** :- (پـه + لا+ سْ) [ پ ، ص ] (۱) سمدستي (۲) دستي ، پـه لاس ورکړے (۳) حاضر ، موجود ۔
ـــــ **کول**:- (اص) (۱) تر لاسه کول ، قبضه کول (۲) سمدستي کول ، فوراً کول۔
**پـه لغـت** :- (پـه + لَ + غَ + تْ) [ پ ، ص ] پـه تـرپ ، پـه منـډه ، زر زر ، سمدستي۔

**پهلو** :- (پَ + هْ + لُوْ) [ فا ، اس ، مذ] اړخ ، څنګ ، خوا ، ډډه۔
څو مې تېغ په پهلو نۀ دے لګېدلے
ستا پهلو به ورقیب اٰسان ورنۀ کړم رحمٰن بابا
**پهلوان** :- (پَ + هْ+ لَ +وا + نْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پهلوانان] زورَور ، طاقتور ، مېړۀ ، مړنے ، بادر۔
کـه پـه زور عـښن رسـتم پهلـوان شـې
پـه لحـد بـه دې ښنـتې شـي کسـکر
ډېر بادشاهان ډېر حکیمان ډېر مړني تېر شو
ډېـر پهلـوانــان عــاقـلان فـردې زماني مصري خان
**پهلـواني** :- (پَ + هْ + لَ +وا + نِيْ) [ فـا ، اس ، مـؤ ] مړتـوب ، بـادري، طاقت
څۀ شو اسفندیا روئین تن و بهمن څۀ شو
څـــۀ شـــو د رستم دستان زور پهلواني مصري خان
**په لوے لاس** :- (پـه + لـوے + لا+ سْ) [ اف : پ (قاموس) ص] پـه کسـت ،قصداً ، خامخا ۔
ـــــ **کار کول**:- (اف) اص۔یو کار خامخا کول ، یو کار په قصد کول۔
**پهم** :- (پَ + هْ + مْ) [ پ ، فا : نهم ، اس ، مذ ، وا] پام ، فکر
ـــــ **کول**:- (اص) پام کول ، فکر کول۔
ـــــ **کېدل**:- (اص) پام کېدل ، فکر کېدل۔
**په متکې** :- (په + مَ + تَ + کې) [ پ ، ص ] (۱) په متې ، ایله(۲) په ګرانـه ، په مشکله۔
**په متې** :- (په + مَ + تِيْ) [ اف : پ (قاموس) ص ] (۱) په متکے ، ایلـه لکـه: "په متې چې راغلے "(۲) په ګرانـه ، پـه مشـکل لکـه: پـه متې خواري اوشو"
**په مړه ګېډه** :- (پـه + مَ + ړه + ګې + ډَه) [ پ ، ص] (۱) پـه تسـلي ، پـه ارام (۲) په ډک نس ، په ډکه خېټه۔
**په وار**:-(په +وا+رْ) [ پ ،ص] په خپل وار، په خپل وخت ، په خپله نېټه۔
**پـه وار وار** :- (پـه + وا+ رْ + وا + رْ) [ پ ، ص ] (۱) پـه لمبـر لمبـر ، پـه خپـل وار (۲) بیا بیا ، مُکرر۔
**پهوړه** :- (پَ + هو + ړَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پهوړې] (۱) د جوګیـانو ، ملنګانو امسا ، پهړه ، پهوړی (۲) پوړه
صاتوبه محکمه وکښه اوس له تنګه
پهـــوړه پـــه لاس لـــرم مصله لنګه معزالله خان
**پهوړی** :- (پَ + هو + ړَ + يَی) [ پ ، اس ، مؤ] و ـــ پهړه
یا ځومه کړه لېوني سره یاري
یـــاد کنـد پهوړې که تیاري خوشحال
**پهوط** :- (پهُو + طْ) [ ه : پُهوټ ، اس ، مؤ] یو قسم خربوزې په شان غټه مېوه چې په هندوستان کښې کېږي ۔دا چې پخه شي نو اوچوي ۔پـه خوند پیکه وي۔
په دا کار نادان هوښیار واړه پوهېږي
د کابــل خــربــوزه بـه ده ترپهوط خوشحال خان
**پهول** :- (پْ + هْ + وُ+ لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت] و ــ پوهول
**پهولے** :- (پْ + هْ + وُ + لَے) [ اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج: پهولي ( مؤ : پهولې) ] پوهولے۔
**پهونه**:-(پْ + هْ + وُ + نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص ] پهونګ ، پوهونه
**پهوونکے** :- (پْ + هْ + وُوْ + نْ + کَے) [ اف: پ (قـاموس) فـا ع ، مذ ، وا ، ج: پهوونکي (مؤ : پهوونکې) ] پوهوونکے۔

**پهه**:- (پَ +هه) [ پ، ه : پهاها ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پهې ] په ، ملهم ، پټۍ.
پــرې د صـــبر پهې بږدم واړه خصا کېږي
چې په زړهٔ باندې مې داغ دے ستا د خال خوشحال

**ــــ کښېښودل**:- (اص) ملهم لګول ، پټۍ لګول.

**په ها** :- (په + ها) [اف : پ (سیند) د تعجب کلمه ] پوهو ، لکه : '' په ها ځومره لرې وئ ''.

**په ها ها** :- (په+ هَا + هَا) [اف :پ (سیند) تعجب، د مبالغې کلمه] پو هو هو لکه: "په هاها دا څهٔ ئې کړي دي"

**په هېر** :- (په + هې + رْ) [ پ ، ص ] په هېره ، غلطي سره ، په خطا

**په یاد** :- (په + یا + دْ) [ پ، ص ] په یادو ، بې د کتاب کتو نه ، په زړهٔ کښې.

**ــــ کول**:- (اص) په یادول ، په زړهٔ کښې کښېښول ، زوتول ، حفظ کول په زړهٔ کول.

**ــــ کېدل**:- (اص) په یادېدل ، په زړهٔ کښې کښېښناستل ، حفظ کېدل په زړهٔ کېدل ، زوتېدل .

**په یادول** :- (په + یا + دْ + وْ + لْ) [ پ ، مص مت] و ــ په یاد کول.

**په یادونګ** :- (پـه + یـا + دْ + وْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قـاموس) حمص]و ـــــ په یادونه

**په یادونه** :- (په + یا + دْ + وْ +نَه) [ پ ، حمص] په یاد کونه ، په زړهٔ کښې کښېښنونه، زوتونه ، په زړهٔ کونه.

**پـه یـادوُونکے** :- (پـه + یـا + دْ + وُوْ + نْ + کَے) [ پ ، فـا ع ، مذ ، وا ، ج: پـه یـادوُونکي (مـؤ : پـه یـادوُونکې) ] پـه یـاد کـوُونکے ، پـه زړهٔ کښـې کښېښوُونکے ، زوتوونکے ، په زړهٔ کوُونکے.

**په یادېدل** :- (په + یا + دې + دْ + لْ) [ پ، مص لا] و ـــ په یاد کېدل

**پـه یادېدنګ** :- (پـه + یـا + دې + دَ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قـاموس) حمص] و ـــــ په یادېدنه.

**په یادېدنه** :- (په + یا + دې + دْ + نَه) [ پ ، حمص] پـه یـاد کېدنـه .پـه زړهٔ کښې کښېښناستنه ، پـه یادېدنګ .زوتېدنه ، حفظ کېدنـه ، پـه زړهٔ کېدنه.

**په یادېدونکے** :- (په + یا + دې + دُوْ + نْ + کَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: په یادېدونکي ، (مؤ : په یادېدونکې) ] په یاد کېدونکے ، پـه زړهٔ کښـې کښېښناسـتونکے ، زوتېـدُونکے ، حفـظ کېـدُونکے ، پـه زړهٔ کېدُونکے.

**پهېـره** :- (پَ + هـې + رَه) [ اف : پ (قـاموس) ص ] پـه څېـر ، پـه شـان ، غوندې ، په شکل ، په رنګ ،

**ــــ کول**:- (اص) په څېر کول ، په شان کول.

**ــــ کېدل**:- (اص) په څېر کېدل ، په شان کېدل.

**پهېلول** :- (پْ + هې + لْ + وْ + لْ)[ اف : پ (قـاموس) مص ] ملهم وغېره خورول یا اوارول.

**پهېلونه** :- (پْ + هې + لْ + وْ +نَه) [ اف : پ (قاموس) حمص] ملهم وغېره خورَونه یا اَوارونه.

**پهېلوونکے** :- (پْ + هې + ل + وُوْ + نْ + کَے) [ اف : پ (قـاموس) فـا ع ، مذ ، وا ، ج : پهېلوونکي (مؤ : پهېلوونکې) ] ملهم وغېره خوروونکے یا اواروونکے

**په یو** :- (په + یُو) [ پ ، ص ] په یو ځان ، یوازې

**پې** :- (پْ + ئِيْ) [ پ ، اس ، مؤ] شودهٔ ، شودے
د شودو پئیو عوض ئې وي په زړهٔ کښې
چې سفـلــه و طـاتـــه ورکه چرې دوغ خوشحال خان

**ــــ پرېښول**:-(اص) (۱) د لنګ مال د لوشلو په وخت په اسانه پې ورکول .مال کېدل (۲) د مالدار سړي نه د مالي ګټې امېد پیدا کېدل.

**ــــ رودل**:- (اص) د ماشوم د خپلې مور د سینې نه پې ځښل.

**ــــ لوشل**:- (اص) (۱) د غوا ، مېښې ، بزې وغېره د تیـو نـه پې راوسـتل (۲) د چا نه څهٔ فائده حاصلول.

**اُومهٔ پې** :- (اص) (۱) کچه پئـې ، اومـهٔ شـودهٔ ، هغـه پـې چـې پـه اور ګرم شوي نهٔ وي (۲) نرم

**له شونډو پې څڅېدل** :- (اص) هغه هلک چې لا پوخ زلمے شوے نهٔ وي د هغهٔ په حقله وائي چې '' لائې د شونډو نه پې ځاڅي''

**پې** :- (پې) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) تصرف ، ذمه ، قبضـه (۲) د مزکې یـو خـاص مقـدار (۳) پرېکـړه ، قطـع (۴) لـږې ژورې اوبـهٔ چـې پښې پکښې په مزکه لګي (۵) د دریاب پایاؤ اوبهٔ.

**ــــ وړل**:- (اف) اص .(۱) د څهٔ څېز تل ته رسېدل ، وېخ تـه تلـل ، ژورتلـل ، اصلیت معلومول (۲) ژورتیا معلومول.

**اوبهٔ پې کول** :- (اف) اص.د اوبو ژورتیا معلومول.

**اوبهٔ پې کېدل** :- (اف) اص.د اوبو ژورتیا او وېخ معلومول.

**باغ پې کول** :- (اف) اص.د باغ ونې پرې کول ، ونې پې کول.

**باغ پې کېدل** :- (اف) اص.د باغ ونې پرې کېدل.

**پـر پـې کېـدل** :- (اف) اص.(۱) پـه تصرف کښـې کېـدل ، پـه قبضـه کښـې کېدل (۲) په ذمه کېدل.

**پـر پـې کـول** :- (اف) اص .(۱) څهٔ څیـز پـه خپلـه قبضـه کښـې راوسـتل . (۲) په خپله ذمه اخستل.

**پې پې** :- (اص) ورپسې ورپسې ، ډلې ډلې.

**ونې پې کول** :- (اف) اص.و ـــ باغ پې کول.

**یو پې کېنل** :- (اف) اص.مزکه د یو خاص اندازې برابر کنستل

**پې**:-(پې) [پ حرف) (۱) پرې ، پرې ، پر باندې په (۲) د حرف پ آواز.

**پے** :- (پے) [ انګ ، اس ، مؤ ] (۱) تنخواه ، (۲) ادائیګي.

**پیا** :- (پَ + یا) [ ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پئې ] پهیه ، پیه ، تېر ، ارینائے ، چکر.

**پیا پې** :- (پَ + یـا + پَې) [ فا ، ص ] پرله پسې ، مکرر ، مسلسل ، په یو مخ.
چې دارو د درد و غم دي هغه مئے
ســاقي راکړه یو دوه جامه پیاپې رحمٰن بابا

**پیاچه** :- (پْ + یا + ڇَـه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: پیاڅې ] (۱) د بـاجرې یـا د نرو جوارو ډوډۍ (۲) د ګېبین وږے یا ببوزے

**پیاڅه** :- (پْ + یا +ڇَـه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پیـاڅې] پـه سر کښې د وینبتولار ، سلنډې ، شینځه ، پېرشونې

**پیاخولـهٔ** :- (پْ + یـا + خْ + لَـه) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پیاخلې] پیالخه ، یو قسم کنبیده ، چکن ، پیاخره.

**پیاخله** :- (پْ + یا + خْ + لَه) [ پ ، اس مؤ ] (۱) ګلوبند (۲) خولَـه راوسـتل (۳) د قمیص د غاړې مغزے.

**پیاده** :- (پْ + یـا + دَه) [ فـا ، ص ج (۱) پېدل ، پـه خپلـو پښـو ، پلے (۲) د تحصیل یا د فوځ پلے سپاهي.

**پیار** :- (پْ + یا + رْ) [ ه ، اس ، مذ ] مینه ، محبت ، پریم

**پیارژندي** :- (پْ+یا +رْ + ژْ + نْ + دِيْ) [اف :پ (قاموس) اس ، مؤ] د شپې اوبهٔ خور ، په شپه د مزکې خړوبونه ، د شپې په مخ مزکه پیٔه کونه.

**ــــ کول**:- (اص) د شپې اوبهٔ خور کول ، د شپې مزکه خړوبول.

**پیارغنده** :- (پْ + یا + رْ + غْ+ نْ + دَه) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ، وا ، ج : پیارغندې ] هغه پُوله چې کېږدۍ چارچاپېره د باران د اوبـو د بند

کولو دپاره جوړولے شي.

**پیاړمه** :- (پْ + یا + ړْ + مَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پیاړمې] (۱) لنګه ، کشه (۲) دُم چي

**پیاز** :- (پْ + یا + زْ) [فا ، اس ، مذ] یوه سبزي چې عموماً د پخکړي د بګار دپاره استعمالیږي.

ډېر ځوانان چې احمقان دي لکه پیاز
د خوشحال نه هوښیار منبک دے پیر فرتوت

**پیاز د چا په خوله نهٔ ریزه کول** :- (مح.(اف) د چا خبرې ته څهٔ اهمیت نهٔ ورکول.

**د پیازو په بیه نهٔ اخستل** :- مح. څهٔ څیز ډېر بې قدره کېدل ، څهٔ څیز ډېر ارزانېدل.

**پیازکے** :- (پْ + یا + زْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پیازکي] یو خود رو بُوټے چې د پیازو په شان وي -او زمکه خواروي.د غرهٔ پیاز.

**پیازه** :- (پْ + یا + زْه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پیازې] (۱) ښځه یا د څهٔ بل څناور ماده چې د وخت نه ئې مخکښې حمل اوغورزېږي. سپیازه (۲) ضائع ، عبث

**ـــــ کېدل** :- (اص) څهٔ پټه خبره څرګندېدل.

**غلا پیازه کېدل** :- (اص) غلا څرګندېدل ، غلا ښکاره کېدل.

**پیاسه** :- (پْ + یا + سه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: پیاسې] (۱) د سېلاب لاره ، خوړ (۲) د دریاب تل.

**پیاغله** :- (پْ + یا + غْ + لَه) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) پیاخله په رنځور خوله راوستل. (۲) ګلوبند ، مفلر

**پیاګي** :- (پْ + یا + ګيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] شا ، روستو ، پسې.

**پیالخه** :- (پْ + یا + لْ + خَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د تبې په انغري ښخ اړخ.

**پیاله** :- (پْ + یا + لَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پیالې] جام ، کټورے ، کاسه

ګل په سر پیاله په لاس کښې نګار راغے
مبارک مې پرستانو! بهار راغ معزالله خان

**ـــــ څښل** :- (اص) د بنګو یا شربو جام څښل ، د بنګو کټورے وهل.

**ـــــ د میو** :- (اص) د شرابو پیاله ، د شرابو جام.

**ـــــ له لاسه اچول** :- (اص) پیاله کښېښودل ، د شرابو وېش بس کول ،

**په مے پُوره پیاله** :- (اص) د شرابو نه ډکه پیاله ، د شرابو ډک جام

**د فلک پیاله** :- (اص) (۱) د اسمان څرخ ، (۲) قسمت ، نصیب ، ازلي برخه

**پیالې خوړل** :- (اص) پیالې څښل ، جامونه نوشل ، پیالې شومل

**پیالې شومل** :- (اص) و ـــــ پیالې خوړل.

**پیانده** :- (پْ + یا + نْ + دَه) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پیاندې] (۱) ګلګوتي زلفې ، ګڼ ګور تاؤ راتاؤ وېښتهٔ. (۲) ښکلے ، پېمخے ، ښائسته.

**پیانده** :- (پْ + یا + نْ + دَه) [پ ، اس ،مؤ ، وا ، ج : پیاندې] کوم تار کښې چې مهیان پیلے شي.

ګوره چې تهٔ چرته چې زهٔ خوشحال په کوم ملکونه
پاس په زړه پرتې مې ستا د تور اوربل پیاندې

**پیانو** :- (پْ + یا + نو) [انګ ، اس ، مذ] د هار مونیم یا د ګوتو باجې په شان لویه انګرېزي باجه.

**پیاورکے** :- (پْ + یا + وْ + رْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] سپلمې.

**پیاوړتوب** :- (پْ + یا + وْ + ړْ + تو + بْ) [پ ، اس ، مذ] (۱) قوت ، طاقت ، تکړه توب ، باوري ، پیاوړتیا (۲) پوهه ، ذکاوت ، هوښیارتیا (۳) سخي توب.

**پیاوړتیا** :- (پْ + یا + وْ + ړْ + تْ + یا) [پ ، اس ، مؤ] و- پیاوړتوب

**پیاوړے** :- (پْ + یا + وْ + ړَے) [پ، اس ، مذ ، وا ، ج : پیاوړي (مؤ: پیاوړې)] (۱) تکړه ، قوي ، طاقتور ، نومیالے ، مضبوط ، بادر (۲) هوښیار ، ذکي، پوهه (۳) سخي

بل به نهٔ وي و سپېد غونډې پیاوړې (د مروتو کسرونه)

**ـــــ کېدل** :- (اص) تکړه ، قوي او طاقتور کېدل ، مضبوطېدل ، نومیالے کېدل.

**پیاوے** :- (پْ + یا + وے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پیاوي] ګنګخړ ، خځله ، هغه واښهٔ چې د سېلاب د اوبو په سر روان وي. کانې.

**پي اے** :- (پيْ + اے) [انګ ، اس ، مخفف] (۱) پرسنل اسسټنټ ، په دفترکښې د لوے عهدېدار ذاتي معتمد (۲) پولټیکل ایجنټ

**پیایل** :- (پْ + یا + يْ + لْ) [پ ، مص مت] پوول ، څرول.

د څارو یو په حساب دي سرې نهٔ دي
خوبانهٔ شپانهٔ چې پیائي خېلې غوا خوشحال

**پے بل** :- (پے + ب + لْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پے بلونه] د تنخواه بل ، قبض الوصول.

**پیپ** :- (پي + پْ) [پ (ګن) اس ، مذ ، وا ، ج : پیپُونه] د لونګ په شکل د سرو زرو نه جوړ د پوزې یو کالے ، بسیر.

**پیپ** :- (پي + پْ) [پ (عا) انګ ، پائپ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پیپُونه] د ربړ یا وسپنې نلې.

**پیپر** :- (پي + پَ + رْ) [انګ اس ، مذ ، وا ، ج : پیپرونه] (۱) کاغذ (۲) اخبار ، (۳) امتحاني پرچه.

**پیپر وېټ** :- (پیپر + وې + ټْ) انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پیپروېټونه] د شیشې نه جوړ هغه غونډ شان څیز چې په دفترونو کښې د کاغذونو د پاسه کښېښودو دپاره استعمالولے شي.

**پیپړي** :- (پيْ + پْ + ړِيْ) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] ډېر مانده غوښې

**پیپل** :- (پي + پَ + لْ) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : پیپلان] یوه لویه سایه داره ونه چې د پان په شان پلنې پاڼې ئې وي. هندوان ئې ډېر عزت کوي.

متل: هندو ته غوا هم خدائے دے ، پیپل هم خدائے دے.

**پیپل پارټي** :- (پیپل + پا + رْ + ټِيْ) [انګ ، اس ، معر ، مؤ] په پاکستان کښې یوه سیاسي ډله.

**پیپلے** :- (پيْ + پْ + لَے) [ه ، اس ، مذ] اوږدهٔ مرچ ، چې په دارو کښې پکارېږي.

**پیپنے** :- (پي + پْ + نَ + یَے) [پ ، اس ، مؤ] قمیص ، کُرته ، خت خلکې ، د ارتو لستونو قمیص.

**پیپه** :- (پِيْ + پَه) [ه ، پیپا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پیپې] د لرګي یا ټین نه جوړ لوے د ډول په شان لوښے.

**پیت** :- (پِيْ + تْ) [پ ، اس ،ص ، مذ (مؤ ، وا ، پیته ، ج : پیتې)] چت ، چپر ، ټیټ ، پلن ، اوار.

**پیتاؤ** :- (پيْ + تاؤ) [پ ، اس ، مذ] (۱) پیتاوے ، د نمر ګرمي ، هغه ځائے چې د ژمي په موسم کښې خلق د باد نه پناه د نمر ګرمۍ ته ناست وي. (۲) د غرهٔ اړخ چې نمر ته مخامخ وي.

متل: سورے پیتاؤ پېژني که نه؟

**ـــــ اخستل**:- (اص) پیتاؤ کول ، پیتاؤ ته کښېناستل ، نمر ته کښېناستل

**ـــــ ته کښېناستل**:- (اص) و ـــــ پیتاؤ اخستل۔

**ـــــ کول**:- (اص) و ـــــ پیتاؤ اخستل۔

**پیتاؤ سورے کتل** :- (اص) (۱) د غرۀ دواړه اړخه کتل (۲) ښۀ لټون کول ، ښۀ بد معلومول۔

**پیتاوي خبري**:-(ب ، خ) اص۔عبث خبرې ، اوتې بوتې ، فضولې خبرې

**پې تاوه** :- (پې + تا + وَه) [ پ ، اس ، مؤ] پائیتاوه ، هغه پټۍ چې په پښو راڅرخولے شي۔

**پیتاوے**:-(پِيْ + تا + وَے) [ پ ، اس ،مذ ، وا، ج : پیتاوي ] و ــ پیتاؤ

**پیت پزے** :- (پیت + پْ + زے) [ پ، ص ] پیت پوزے۔

**پیت پوزے** :- (پیت + پو + زَے) [ پ ، ص ] چِت پوزے ، چت پیزے ، پیت پیزے ، هغه څوک چې پوزه ئې چته وي۔پیت پزے

**پیت پیزے** :- (پیت + پې + زَے) [ پ ، ص ] و ـــــ پیت پوزے۔

**پې ترې** :- (پې + تَ + رِيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پې ترې ] هغه تحویلدار چې مال ورڅخه قبدولے شي۔پاټکي۔

**پیتل** :- (پِيْ + تَ+ لْ) [ ه ، اس ، مذ ] یو زیړ شان دهات چې د جستو او تانبې نه جوړولے شي۔

**پیت نسے** :- (پِيْ + تْ + نَ+ سَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پتنوس ، مجمه۔

**پیتول** :- (پِيْ + تَ +وْ + لْ) [ پ ، مص مت ] چتول ، چپلیخول ۔چپړول ، په زور سره پلنول۔

**پیتونګ** :- (پِيْ + تْ + وْ + نْ + ګْ) [ اف: پ (قاموس) حمص] و ــ پیتونه۔

**پیتونه** :- (پِيْ + تَ + وْ + نَه) [ پ ، حمص] پیتونګ ، چپړونه ، چپلېخونه چتونه۔

**پیتوونکے** :- (پِيْ + تَ + وُوْ + نْ + کَے) [ پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: پیتـــوُونکي ، (مــؤ : پیتـــوُونکې ) ] چِتـــوونکے ، چپـــړوُونکے ، چپلیخوُونکے۔

**پیته** :- (پِيْ + تَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پیتې ] د پیمائش فیته ، هغه فیته چې کچ پرې کولے شي۔

**پیتے** :- (پِيْ + تے) [ پ ، اس، ص ، مذ ] (۱) یو قسم ګولي دار ټوپک (۲) چتے ، چت ، (۳) چت پوزے۔

**پیتي** :- (پِيْ + تِيْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) د غانښو زوه ۔ (۲) د شوملو غړکه۔

**ـــــ نیول**:- (اف) اص۔د غانښو زوه کول۔

**پېتي** :- (پې + تِيْ) [ س ، اس ، مؤ] پیاتي ، پات ، پوخ دال۔

**په پیتي شکرې غوښتل** :- (مح) د لږ څیز زیاته صله غوښتل ، د لېوتتوب خواهش لرل ،

**پیتېدل** :- (پِيْ + تې + دْ + لْ) [ پ ،مص لا] چِتېدل ، چپلیخ کېدل، چپړېدل۔

**پیتېدنګ** :- (پِيْ + تې + دْ + نْ + ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص ] و- پیتېدنه۔

**پیتېدنـه** :- (پـې + تـې + دْ + نَـه) [ پ ، حمـص ] پیتېـدۀ ، پیتېـدنګ ، چتېدنه ، چپلیخېدنه ، چپړېدنه۔

**پیتېــدونکے** :- (پـِيْ + تـې + دُوْ + نْ + کَـے) [ پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : پیتېــدُونکي (مـؤ : پیتېــدُونکې) ] چِتېــدُونکے ، چپړېــدونکے ، چپلیخېدونکے۔

**پیتېدۀ** :- (پِيْ + پې + دۀ) [ پ ، حمص] و ـــــ پیتېدنه۔

**پېټ** :- (پې + ټْ) [ پ ، اس ، مذ] (۱) لعنت ، پېغور (۲) بالکل ، هرګز (۳) پیتۍ ، پشتاره۔

**ـــــ پر وئیل**:- (اص) لعنت پر وئیل ، ښخي نۀ ورتلل۔

**ـــــ نۀ ورتلل**:- (اص) بالکل نۀ ورتلل ، ښخي نۀ ورتلل۔

**پېټار** :- (پې + ټا + رْ) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پېټارونـه ] (۱) یـو قسـم ټوکرۍ چې ګېډه ئې ارته او خولۀ ئې تنګه وي (۲) لویه خولۀ ، ستره خولۀ۔

**پېټـار خُولے** :- (پېټـار + خُـو + لَـے) [ پ ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : پېټـار خُولي ] هغه څوک چې خولۀ ې ډېره لویه وي ، سترخولے

**پېټک** :- (پې + ټَ + کْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پېټکونـه ] (۱) د ناوې مخ کتل یا څرګندول (۲) هغه کالے چې زنانه ئې د غوړ او تندي تر مېنځ اچوي۔

**ـــــ ورکول**:- (اف) اص ۔(۱) د ناوې مـخ څرګندول ، (۲) ناوې تـه د مخ کتو پیسې ورکول۔

**مخ پېټک** :- (اف) اص۔د ناوې مخ څرګندول۔

**پېټک** :- (پې+ ټَ + کْ) [پ، اس ، مذ] پېټل، لعنت، ملامت ، ملامتیا ۔

لویــاوۀ ئــې پېټکــو لــره د کښــلو
چې ساتۀ عبدالحمید شو ځار په ځان

**پېټل** :- (پې + ټْ + لْ ) [ پ ، مص مت ] لعنت ملامت کول ، بې عزته کول

**پېټلے** :- (پې + ټْ + لَے ) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پېټلي ] ملامت کـړے ، بې عزته کړے۔

**پېټن** :- (پې + ټَ + نْ ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] نفرت ، شکایت

**پېټنه** :- (پې + ټْ +نَه) [ پ ، حمص ] لعنت ، ملامت کونه۔

**پېټو** :- (پې + ټُو) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] لعنت ، ملامت کوونکے۔

**پېټو** :- (پې + ټُوْ) [ ه ، اس ، ص ، مـذ ] خېټور ، زیات خـور ، هغـه څوک چې ډېر خوراک کوي۔

**پېټوار** :- (پِيْ + ټْ + وا + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ــ پېټار

**پېټه** :- (پې + ټَه) [ پ ، اس ] د کدو یو قسم چې غټ او غونډ وي ، حلوا ترې جوړولے شي۔

**پېټ هېټ** :- (پې + ټْ + هې + ټْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ،مـذ] پېغـور ، لعنت ، ملامت۔

**ـــــ کول**:- (اف) اص۔لعنت ملامت کول ، پېغور ورکول۔

**پېټے** :- (پې + ټَے) [ پ ، اس ، مذ، وا ، ج : پېټي ] (۱) پنډ ، بار (۲) ذمه واري۔

ټپه: شونډې ئې شربت که راله راکه
زۀ د هجران پېټے په سر سفر له ځمه

**ـــــ اچول**:- (اص) (۱) پنډ یا بوج د سر نـه پـه مزکـه کښېښـودل (۲) پـه چا څۀ ذمه واري ورتپل۔

**ـــــ په سر اخستل**:- (اص) (۱) بـوج اخسـتل ، پنډ اخسـتل(۲) ذمـه واري اخستل۔

**ـــــ په سر کېدل**:- (اص) (۱) بوج یا پنډ په سر کېـدل (۲) ذمـه واري پـه سر کېدل ۔

**ـــــ تر مزله رسول**:-(اص) (۱) بوج یا پنډ تر اخري حده وړل (۲) خپله ذمه واري په ښۀ شان پوره کول (۳) د چا سره تر اخره وخته پت پالل

**ـــــ درنـول**:- (اص) (۱) بـوج یـا پنـډ درنـول (۲) پـه ځـان زیاتـه ذمـه واري اخستل (۳) ځان ګنهګارول ، بد کارونه کول (۴) ځان زیات کړول

**ـــــ درنېدل**:- (اص) (۱) بـوج یـا پنـډ درنېـدل (۲) ذمـه واري زیاتېـدل ، (۳) زیات ګنهګارېدل ، (۴) زیات کړېدل۔

**خپل پېټے وړل** :- (اص) (۱) خپل بار یا پنډ وړل (۲) خپل کـار سره کـار لـرل ، په چا څۀ غم غرض نۀ کول۔

**پېټي** :- (پې + ټيْ) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پېټۍ] (۱) کمر بند ، د چمړې یا کرمچ هغه تسمه چې فوځیان ئې په ملا تړي ـ (۲) د لرګي یا ګټې نه جوړ صندوق شان۔

**پېجاؤ** :- (پې + جاؤ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، (مؤ ، وا : پېجاوه ج : پېجاوې) ] پاک ، صفا ، سُتره ، پجاؤ ، اچه ، پاکیزه۔

**ـــــ کول**:-(اف) اص۔صفا سُتره کول ، پجاؤ کول ، اچه کول ، پاکول

**ـــــ کېدل**:-(اف) اص۔صفا سُتره کېدل، پاکېدل، پجاؤ کېدل، اچه کېدل

**پېجاوول** :- (پې + جا + وَ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] پاکول ، صفا کول ، اچه کول ، پاکیزه کول ، پیجاؤ کول۔

**پېجاوونه** :- (پې + جا + وَ + وْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] پاکونه ، پاکیزه کونه ، اچه کونه ، صفا سُتره کونه۔

**پېجاوونکے** :- (پې + جا + وَ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پېجاوُونکي (مؤ : پېجاوُونکې) ] صفا کوُونکے ، پاکوُونکے ، پاکیزه کوُونکے ، اچه کوُونکے۔

**پېجاوېدل** :- (پې + جا + وې + دْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص ، لا] صفا کېدل ، پاکېدل ، اچه کېدل ، پاکیزه کېدل ۔

**پېجاوېدنګ** :- (پې + جا + وې + دْ + نْ +ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پېجاوېدنه ۔

**پېجاوېدنه** :- (پې + جا + وې + دْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] پېجاوېدنګ ، پېجاوېدهٔ ، صفا کېدهٔ ، اچه کېدهٔ ، پاکېدهٔ۔

**پېجاوېدُونکے** :- (پې + جا + وې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) مف ،مذ ، وا ، ج : پېجاوېدُونکے) ] صفا کېدونکے ، اچه کېدونکے ، پاکېدونکے ، پاکیزه کېدُونکے۔

**پېجاوېدهٔ** :- (پې + جا + وې + دهٔ) [اف : پ (قاموس) حمص]و ـــــ پېجاوېدنه۔

**پېچ** :- (پې + چْ) [فا ، ص ، مذ ، وا] (۱) ول ، تاؤ (۲) د خېټې درد ، مروړ۔

د اور بل په هر هر پېچ کښې ئې نامې دي
مشـاطـه ئې چې پـرانـزي پېچ و تاب خوشحال خان

**پېچ** :- (پې + چْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېچُونه] (۱) هغه رخدار مېخ چې په سر کښې ئې د تاولو ځاے جوړ وي (۲) ب ، خ : چابي کُنجي ، نُوسے ، پلے۔

**ـــــ تاوول**:- (اص) په پېچ کش مېخ لګول (۲) یوې خبرې ته هوا ورکول

**پېچ** :- (پې + چْ) [پ (ظفر) اس ، مذ] (۱) پېکو ، هغه مشین چې مېنچې پرې جوړولے شي۔(۲) ص۔سرکشي ، خفګان

بې له بندګۍ دې بنده نور هېڅ نهٔ کا
پــه لړ په ډېر دې له ښتن پېچ نهٔ کا خوشحال خان

**پېچا پېچ** :- (پې + چا + پې + چْ) [پ، ص] تاؤ راتاؤ ، ګلګوتي ، ګُور ګوتي، ول په ول۔

تــا چې زلفې پېچا پېچ سره ول ول کړ
په ګلونو کښې یو تور منګور خفته شهٔ خوشحال خان

**پېچان** :- (پې + چا + نْ) [فا ،ص ، مذ ] تاؤ راتاؤ ، ول ول ،ګلګوتي ګُور ګوتي ، پېچاپېچ۔

د یار زلفې پېچان پېچ
پــه مخ دې سیاران زما احمد شاه

**پېچان پېچان** :- (پې + چا + نْ + پې + چا + نْ) [پ ، ص] کاږهٔ وارهٔ ، لور د لوریه ، د یو مخ بل مخ ته ۔

راغلو په ګړی د خبر آباد پېچان پېچان
پــورې که راپورې خلق واړه نندارچیان خوشحال خان

**پېچ پلے** :- (پېچ + پَ + لْ + یَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] یو قسم پلي دار واښهٔ چې په غنمو کښې راټو کېږي۔

**پېچش** :- (پې + چْ + شْ) [فا ، اس ، مذ ] د خېټې مروړ ، د درد سره اودس ماتې راتلل۔

**پېچک** :- (پې + چَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د تارونو تخته (۲) د اوبو دپاسه شنه غوړمبۍ یا اُوبرې ، د چینګشو کالي ، چُونګښه۔

**پېچ کش** :- (پېچ + کَ + ش) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېچ کشونه ، پېچ کشینه] د پېچ د تاوولو او ټینګولو آله ،

**پېچل** :- (پې + چْ + لْ) [پ ، مص ، مت] تاوَول ، پېچ ورکول ، غښتل ، تاؤ راتاؤ کول۔

**پېچلـره** :- (پېچ + لَ + رهْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] سپشتکے ، شپشتے ، پیشترے۔

**پېچلے** :- (پې + چْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پېچلي (مؤ : پېچلې) ] تاؤ کړے ، تاؤ راتاؤ کړے ، ګونجې مونجې ، نغښتے ، ول ول شوے۔

**پېچ مخے** :- (پېچ + مْ + خَے) [پ (ظفر) اس ، ص ، مذ] پېمخے ، ښکلے ، ښائسته

**پېچ مرے** :- (پېچ + مَ + رَ + یَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] یوه اوږده شان توره یا شنه مرۍ چې سپینې کرښې پکښې وي او د ماشومانو په پښو پورې تړلے شي۔کُونجکه۔

**پېچ موزې** :- (پېچ + مو + زې) [پ ، اس ، مؤ] پېچموزې ، پچمۍ ، ټوقې ، ملنډې ، وشتې ، پېچمې۔

**ـــــ کول**:- (اص) پېچموزې کول ، ملنډې کول ، ټوقې کول۔

**پېچموزې** :- (پېچ + مو + زې) [پ ، اس] و ـــ پېچ موزې۔

**پېچمۍ** :- (پېچ + مَ + یَے) [پ ، اس ، مؤ] و ـــ پېچ موزې

**ـــــ وهل**:- (اص) ټوقې کول ، ملنډې کول۔

**پېچمې** :- (پېچ + مې) [پ ، اس ، ج] و ـــ پېچ موزې۔

خاندي په دا دور لېوني په هوښیارانو
پېچمے مسخرې کا بې خبر په بخرد لو خوشحال خان

**پېچواړے** :- (پېچ + وا + رَ + یَے) [پ ، اس ، مؤ] د اسپې د پښو تړلو رسۍ یا پړے۔

**پېچوان** :- (پېچ + وا + نْ) [فا ، اس ، م ، وا ، ج : پېچوانونه] یو قسم چیلم چې نچه ئې ډېره اوږده او په اسانه تاوېدے راتاوېدے شي

**پېچ و تاب** :- (پې +چو+تا +بْ) [فا ،ص،مذ ] (۱) تاؤ راتاؤ ، ول ول (۲) درد ېدنه ، قرار نهٔ موندنه ، بې قراري۔

د حریص لـه خپله نقده بهره نشته
لکه مار د ګنج د پاسه پېچ و تاب وي رحمٰن بابا

قرار ئې نهٔ شي پېچ و تاب که دام
چې وي چیچلے ستا د زلفو ښامار مصري خان

**پېچومے** :- (پې + چُوْ + مَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېچومي] ستغ ، چرائي۔متل: مېږې ته پچه هم پېچومے وي۔

**اوبهٔ په پېچومي خېژول** :- (مح) (۱) اوبهٔ په لوړه یا ستغ خېژول ـ (۲) ګران او نهٔ کېدونکي کار ته لاس اچول۔

**پېچوُونکے** :- (پې + چُو + نْ + کَے) [پ ،اس ، فا ، ع ، مذ ، وا ، ج : پېچوُنکي (مؤ : پېچونکې) ] پېچونې ، تاؤ ورکوونکے ، تاووُونکے

**پېچونے** :- (پې + چو+ نَے) [پ ، اس ، تصغیر، مذ ، وا ، ج : پېچوني (مؤ :

پیچونی ) ] ورکوتړے ، ډېر ورکوتړے.

**پېچونے** :- (پې + چُوْ + نَے) [ پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پېچوني] و- پېچونکے.

**پېچوول** :- (پې + چو + وْ + لْ) [ پ ، مص مت ] پېچل ، تاوَول.

چې مــدام ئې زمــا زړهٔ لـه غمه مري
توري زلفې دې پېچودې دي که نهٔ دي رحمٰن بابا

**پېچه** :- (پې + چَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پېچې ] د زنانه ؤ د غوږ د لاندې کمڅۍ کړې ویښتهٔ.

**پېچیدګي** :- (پې + چِيْ + دْ + ګِيْ) [فا ،اس ، مؤ] مُشکل ، خنډ ، ګرانوالے.

**پېچېدل**:- (پې + چې + دْ + لْ) [ پ ، مص لا] تاوېدل ، غښتلے کېدل

**پېچیده** :- (پې + چِيْ + دَه) [ فا ، ص ] ګران ، مشکل.

**پېځ**:-(پې + ځْس) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] صبر ، زغم ، برداشت

**ـــ کول**:- (اف) اص.صبر کول ، زغمل، برداشت کول.

**پېځـانے** :- (پېْ + ځْسا+ نَے) [ اف :پ (قـاموس) اس ، مـص ، مـذ ، وا ، ج: پېځانې ] لرِ شان ، پُوټے ، بکسکے ، خورے.

**پېځکه** :- (پِيْ + ځْس + که) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پېځکې ] پېځه ، پلؤ ، د لوپټې یا څادر ګُټ ، پېځکۍ.

**پېځکۍ** :- (پِيْ + ځْس+کَۍ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ] و - پېځکه

**پېځل** :- (پې + ځْس + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] صبر کول ، زغمل ، برداشت کول.

چې پېځې هومره بلا په عاشقۍ کښې
د حمیــد صــورته ســخته څـهٔ بـلا ئــې

**پېځنه** :- (پې + ځْس + نه) [ اف : پ (قاموس) حمص ] صبر کونه ، زغم کونه ، برداشت کونه.

**پېځــول** :- (پــې + ځْــس + وَ + لْ) [ اف : پ (قــاموس) اس ، مــذ ، وا ، ج: پېځولُونه ] د کېږدۍ یا تنبو پړده ، قنات.

**پېځونکے** :- (پې + ځْسُوْ + نْ + کے) [ اف : پ (قاموس) فا ، ع ، مذ ، وا ، ج : پېځوُنکي ( مؤ : پېځوُنکې ) ] صبر کوونکے ، زغموُنکے برداشت کوُونکے.

**پېځــه** :- (پــې + ځْسَــه) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] (۱) زغـم ، صـبر ، برداشت ، (۲) قسمت ، تقدیر ، برخه.

**پېځه** :- (پې + ځْسهٔ) [ اف : پ (قاموس) اس ] بې ښې توښې سړے

**په پېځه کېدل** :-(اف) اص.بې ښې توخې جوړېدل ، په بل پسې تلل

**پېځه** :- (پِيْ + ځْسه) [ پ ، اس ،مؤ ] پلؤ ، لمن.

**ـــ اچول**:- (ب،خ) [ اص .چاته منت زاري کول ، شوک د څه کار نه منع کول.

**ـــ ګنډه کول**:- (اص) (۱) څادر یا لـوپټې تـه غوټه ورکـول (۲) چا تـه څهٔ خبره وریادولو دپاره د هغهٔ د څادر پیځې ته غُوټه ورکول ، (۳) چاته څهٔ تحفه ورکول.

**ـــ لټول**:-(اص) د بجود پلار مور څادر د خوراک په څیز پسې کتل

**ـــ نیول**:- (اص) (۱) د څادر یا لـوپټې لمـن نیـول (۲) چاتـه خواست زاري کول ، زارۍ کول (۳) د چا پناه اخستل.

**پېځیـالے** :- (پِـيْ + ځْـس + یـا + لَـے) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ] (مؤ : پیخیالۍ ) ] صبر ناک ، زغم لرونکے.

**پېځل** :- (پې + ځْزَ + لْ) [ پ ، مص ، مت] و ـــ پېځل

محنتونـه ئې د مینې ؤ پېـځلې
ؤ ئې ، کاښې د غمونو په سر ځلې حمید

**پېخاړه** :- (پِيْ + خا + ړه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پېخـاړې ] د ګډو بزو هغه اوچې پچې چې وښتو پورې ئې نښتلې وي.

**پېخاړې اچول** :- (اف) اص .د ګډو بزو د چړېدلو په بیماری اخته کېدل ، پېخاړې غورځول.

**پېخاړې غورځول** :- (اف) اص.و ـــ پېخاړې اچول.

**پېخر**:-(پې + خَ + رْ) [ پ ، ص ] ډېر زیات ، بې خرته ، پرېوان ، کافي

پـــه پېــخــر بـــه د هـــر چاکره پراتهٔ ؤ
که دا دُر مې د ږلۍ غوندې ارزان دے خوشحال خان

**په پېخر کېدل** :- (اص) پرېوانه کېدل ، ډېر زیات کېدل.

**په پېخرو پېخرو ورکول** :- (اص) ډېر زیات ورکول ، بې اندازې ورکول ، ډېر مقدار ورکول.

**پېخل** :- (پې + خْ + لْ) [ اف : پ (قاموس) مص مت ] رنځور خولې کول ، په بیمار خوله راوستل.

**پېخلے** :- (پې + خ + لَے) [ اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پېخلي ( مؤ : پېخلې ) ] خولې کړے شوے.

**پېخنه** :- (پې + خْ + نَه) [ اف : پ (قـاموس) حمص] خولې کونه ، خوله راوستنه.

**پېخوُنکے** :- (پې + خُوْ + نْ + کَے) [ اف : پ (قـاموس) فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: پېخوُنکي (مؤ : پېخوُنکې ) ] خولې کوونکے ، خوله راوستونکے.

**پېخي** :- (پِيْ + خِيْ) [ اف : پ (قاموس) ص ] لوے او بې ډوله غاښونه

**پېدا** :- (پَې + دا [ فا ،اس ] (۱) زېږېدلے ، شوے (۲) جوړ،تیار ، ساز (۳) موندل، حاصلول ، مونتل (۴) عادي ، بلد (۵) ظاهر څرګند ، جوت

دربغه یو هسې پېدا شي چې په عشق کښې
دا دې مــا لېــونے زړهٔ څخــو معقــول کــا خوشحال خان

طبیبــان چــې لــه دارونــه ئــې عــاجز دي
خــدا ے کــه هســې محبــت پېــدا مــرض معزالله خان

پــه ربښــتیا وئیــل دې هســې دا وي شــي
چــې پېــدا کــا خپــل عــزت د دوؤ ورانــدې خوشحال خان

د ګفتــار خلــق هــر څــاے هــزار هــزار دي
مــرد هغــه دے چــې پېدا کانــدې کــردار مصري خان

**ـــ کول**:- (اص) (۱) زېږېدل (۲) موندل (۳) ګټل (۴) ظاهرول ، څرګندول ، جوتول.

**ـــ کېـدل**:- (اص) (۱) زېږېــدل ، (۲) مونــدل کېــدل ، (۳) ظــاهرول ، څرګندېدل ، جوتېدل.

**د خدائے پېدا** :- (اص) تمام دنیا او مخلوق

**پېداوار** :- (پې + دا + وا + رْ) [ فا ، اس ، مذ] (۱) فصل ، پېداواري (۲) ګټه ، حاصل (۳) پېدا کړے ، نتیجه.

**پېداواري** :- (پېدا + وا + رِيْ) [ فا ، اس ، مؤ ] و ـــ پېداوار.

**پېداوښــت** :- (پېــدا + وَ + ښْ + تْیــا وَ + خْ + تْ) [ پ ، اس ، مــذ ] (۱) پېدائش ، مخلوق ، (۲) امدن ، ګټه ، بُود.

**پېدائش** :- (پېدا + يَ + شْ) [ فا ، اس ] پېداوښت ، مخلوق ، پېدائښت ، پېـدائش وارړه لـه عشـقه دے اے مصـره
پـه معنـي دے عشـق د کـل عـالم اْبـا

**پېدائشي** :- (پېدا + ئې + شيْ) [ فا ، ص ] د پېداوښت سره اصلي ، فطري

**پېدائښت** :- (پېدا + يَ + شْ + تْ یا يَ+ خْ + تْ) [پ ، اس، مذ ]و- پېدائش

**پېداوېــدل** :- (پَـېْ + دا + وې + دْ + لْ) [ پ ، مـص لا] (۱) پېـدا کېـدل ،

زېږېدل ، (۲) موندلی کېدل ، په لاس راتلل.

بس کړه خوله معزالله اونیسه خاموش شه

پیــدا او بــړي هـــر محنت لـــه محبت معزالله خان

**پېږ در پېږ** :- (پېږ + دَ + رْ + پَېږ) [فا ، ص] پرله پسې ، په یو مخ.

په دا هسې بې درپې باران کښې دله

په دښتهٔ پسې ډېره شـاه اوویستله حمید

**پېدل** :- (پَې + دْ + لْ) [ه ، اس] (۱) په خپلو پښو ، بغېر د سورلۍ نه پیاده ، (۲) د شطرنج په لوبه کښې کمزوري مُهره (۳) پیاده ، لښکر.

**پېډ** :- (پې + ډْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېډُونه] (۱) د خطونو لیکلو کاپۍ ، چې اکثر څهٔ شعر نیم یا د استوُونکي پته پرې چاپ کړے شوې وي. (۲) د کپړې هغه ګړۍ شان چې درزیان ئې د کوټ په اوږه کښې لګوي (۳) د مُهر لګولو د سیاهۍ ډبے.

**پېډ** :- (پې + ډْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا] ادا کړے ، ورکړے.

**پېډ** :-(پِيْ + ډْ) [پ ،(ب،خ) اس ، ص ، مذ ، (مؤ،وا: پیډه ، ج: پیډې)] پیډے ، کجے ، چې پښې ئې کږې وي. اَډے ګوډے ، پیډن.

**پي ډبليو ډي** :- (پِيْ + ډَ + بَ + لْ + یُوْ + ډِيْ) [انګ ، اس] پبلک ورکس ډیپارټمنټ ، د تعمیرات عامه محکمه.

**پېډل** :- (پَې + ډَ + لْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېډلونه ، پېډلینه ، پېډلان] د بائیسکل ، پیانو یا د ګنډلو د مشین یوه پُرزه چې په پښې چلولے شي.

**پېډن** :- (پِيْ + ډَ + نْ) [پ ، اس ، مذ] و ـــــ پیډ

**پيډے** :- (پِي+ ډَے) [پ (ګن )اس، مذ ، و،ج : پیډي (مؤ: پیډۍ)] و - پیډ

**پیر** :- (پِيْ + رْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پیران ، پیرون ، (مؤ ، وا: پیره ، ج : پیرې)] مرشد ، ولي ، استانه دار ، د پیر خانې سره تعلق لرونکے

د خپل زړهٔ لـه حاله څهٔ وایم و چاته

خاموشي ده نصیحت د پیر و ماته معزالله خان

زهٔ د ښکلیو په پښو سر ږدم که نور خلق

خپل ســرونـــه د پیرانو په اقدام ږدي خوشحال خان

ـــــ **دستګیر**:- (اص) کامل پیر ، پیران پیر صاحب.

**پیر** :- (پِيْ + رْ) [فا ، اس ، ص ، مذ] زوړ ، عمر خوړلے ، ګړېدلے ، بوډا ، ضعیف ، معذور.

لکه کارو د مړني دي

هسې کار نهٔ دے د پیر خوشحال خان

**پیر** :- (پِيْ + رْ + فا ، اس ، مذ] د ګل ورځ ، دوشنبه ، دریم ، سوموار

**پېر** :- (پَې + رْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېرونه] (۱) چکر ، دور ، ګردش (۲) رنګ ، انداز (۳) پور ، قرش

مخ په وړاندې درومي پټ په څنګ ورته نظر کا

خوښ اوسـه خوشـحاله بیـا ښـهٔ پېـرو کـړو اسمان

کبرو خیال خو لاله ځایه ستا عادت ؤ

او که نن زما له قصده پـه بــل پېر ئې رحمن بابا

ـــــ **اړول**:- (اص) (۱) څرخ اړول ، ګردش کول (۲) حالت بدلول ، رنګ بدلول.

ـــــ **کول**:- (اص) (۱) چکر کول ، ګردش کول ، حالت بدلول (۲) پورول ، قرض اخستل.

**پېرا** :- (پـې + را) [انـګ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پېـرې] پېراګـراف ، د مضمون یوه ټکړه چې یو څو فقرې پکښې وي.

**پېراشوټ** :- (پې + را + شُوْ + ټْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېراشوټونه] هوائي چترۍ چې د هغې په ذریعه سړي او سامان د هوائي جهاز نه زمکې ته راکوزولے شي.

**پېرافين** :- (پېرا + فِيْ + نْ) [انګ ، اس ، مذ] د پټرولو نه صفا کړې اوبهٔ شان چې ویزلین او ملهمونه ترې جوړېږي.

**پېراګراف** :- (پېرا + ګْ +را+ فْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېراګرافونه] و ـــ پېرا

**پېراګوئے** :- (پېرا + ګو+ ئے) [انګ ، اس ، معر] د سوېلي امریکې یو ملک.

**پېرانه** :- (پې + را + نه) [پ (مهه) اس ، مؤ] هغه اوچت ګول ځاے چې د ګنو ګانۍ پرې چورلي.

**پېرانے** :- (پـې + را + نَـے) [پ ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : پېرانـي (مـؤ : پېرانۍ)] پېریانے ، پېریانو نیولے.

**پېرختونے** :- (پېر + خَ + تُوْ + نْ + نَے) [اف (قاموس) اس ، مؤ] پېروته ، پروتې.

**پېرخته** :- (پېر + خَ + ته) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] پېروته ، پروتے ، پېروتے

**پیرړ** :- (پِيْ + رْ + ړْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] و ـــــ پرېړ

ـــــ **کول**:- (اف) اص. پرېړ کول ، مضبوطول ، غټول.

ـــــ **کېدل**:- (اف) اص. پرېړ کېدل ، مضبوطېدل ، غټېدل

**پیرړتـوب** :- (پیـرړ + تـو + بْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] غټـوالے مضبوطوالے ، پیرړ والے ،

**پیرړ والے**:-(پیرړ + وا + لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـ پیرړتوب

**پېرزو** :- (پې + رْ + زو) [پ ، ص] (۱) سود ، پرزو (۲) خوښه ، پسند ، خواهش ، مینه

چې پېرزو ئې بې لـــه ښو په بدو نهٔ شي

اول مور ده دوهم پلار دریم ښهٔ یار دے قلندر افریدے

په هندو په مسلمان مې پېرزو نهٔ دے

لکه ستا په فراقت کښې حال زما شهٔ معزالله خان

ـــــ **کول**:- (اص) سود کول ، خوښول.

ـــــ **کېدل**:- (اص) سود کېدل ، خوښېدل.

**پېرزو کېدنګ** :- (پېرزو + کې + دْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ پېرزوینه

**پېرزوینه** :- (پېرزو + يْ +نَه) [پ ، حمص] پېرزو کېدنګ ، سود ، تسلي ، د زړهٔ خواهش ، مینه.

ـــــ **کول**:- (اص) سود کول ، مینه کول ،

ـــــ **کېدل**:- (اص) سود کېدل ، مینه کېدل.

**پېرس** :- (پې + رَ + سْ) [انګ ، اس ، معر] د فرانس د تخت ځاے. یو مشهور ځاے.

**پېرســکوپ** :- (پــې + رِ + سْ + کــو + پْ) [انـګ ، اس ، مــذ ، وا ، ج : پېرسکوپونه] اس ، مذ ، وا ، ج : پېرسکوپُونه] یو قسم آله چې پاس په سر کښې او لاندې ئې کږې شیشې لګېدلې وي. په څو او حفاظت کښې ناست کس پکښې د بهر حالت ګوري. په مورچو او ابدوز کشتو کښې کار ترې اخستے شي.

**پېرشوني** :- (پېر + شو + نِيْ) [پ (ب، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : پېرشونۍ] د سر د ویښتو لاړ ، شینځه.

**پېرکے** :- (پې + رَ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پېرکي] بوراني ، د خوراک یو څیز چې د کروتو وغېره نه پخولے شي.

**پیرکے** :- (پِيْ + رْ + کَے) [پ ، اس ، تصغیر ، مذ] وړوکے پیر.

**پېرګـر** :- (پېـر + ګْ + رْ) [اف : پ : پېرګـره ، ج : پېرګـرې)] پېروکـار پېښمار.

**پیرگے** :- (پيْ + رْ + گَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پیرگي] (۱) د بلنځي يا د بلوط ونې پلے ، وړوکے پیر۔

**پیرگے** :- (پيْ + رْ + گَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پیرگي] پینځۀ غانبے ، څلور غانبے ، پلن سرے۔

**پېرل** :- (پې + رْ + لْ) [ پ ، مص مت ] (۱) بوټل ، وودل ، کټ په بوټ جوړول ، (۲) مرۍ يا دانې په مزي کښې پيل۔

**پېول** :- (پې + رْ + لْ) [ پ ، مص مت ] پېرودل ، په بيه اخستل۔

**راپېرل** :- (اص) غُبنتل ، پېرزو کول ، رامدد کول۔

**پېرلے** :- (پې + رْ + لَے) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پېرلي (مؤ : پېرلې)] (۱) بُوټلے ، وودلے ، (۲) پېيلے ، (۳) اخستے۔

**پېرمخے** :- (پېر + مَ + خے) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پېرمخي (مؤ : پېرمخې)] ښکلے ، پئے مخے ، ښائسته۔

**پېرنګ** :- (پې + رَ + نْ + گْ) [ پ ، فا: فرنګ ، اس ، مذ] پرنګے ، پېرنګے ، انګرېز ، سُورمخے۔

ټپه: چې د ګړۍ د ختو نۀ دے
پېرنګ ولې دې پرتوګ نشان کونه!

**پېرنګواله** :- (پېرنګ + وا + لَه) [ پ ، اس ، مؤ] (۱) د پېرنګيانو د حکومت زمانه (۲) د انګرېزانو خوئي۔

**پېرنګے** :- (پې + رَ + نْ + گَے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېرنګيان، مؤ، وا: پېرنګۍ ، ج : پېرنګيانې] و ــــ پېرنګ

**پېرنه** :- (پې + رْ + نَه) [ پ ، حمص] (۱) بُوټنه (۲) پيَنه (۳) اخستنه

**پېرَو** :- (پې + رَوْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېروان] مُريد ، چېلا

اصحاب واړه بخوم د اقتدا دي
پېروان ئې مشرف په اهتدا دي حميد

**پېرو** :- (پې + رُوْ) [ انګ ، اس ، مذ ] (۱) په سويلي امريکه کښې يو ملک (۲) د يو مارغۀ نوم۔

**پېروان** :- (پې + رْ + وا + نْ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېروانُونه] پېروان ، انول ، اوبنره۔

**پېروته** :- (پېر + وَ + ته) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ] و ـــ پېرخته

**پېروتے** :- (پېر + وَ + تے) [ اف : پ (قاموس) اس مذ] و ـ پېرخته

عاشقان به ستا له کويه چرته درومي
چې تر زړۀ ئې ستا زلفېنې دي پېروتے مصري خان

**پېروتې** :- (پېر + وَ + تې) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـ پېرخته

**پېرود** :- (پې + رو + دْ) [ پ ، اس ، مذ ] خريد ، بيه۔

**پېرودل** :- (پې + رو +ـ دْ + لْ) [ پ ، مص مت ] خريد کول ، بيه کول

څوک که دانا نۀ وي له نادانه نۀ پند اخلي
څوک به په قيمت مشکرېې پېري د ګوهر معزالله خان

**پېرودلے** :- (پېرو + دْ + لَے) [ پ ،مف ، مذ ، وا ، ج : پېرودلي (مؤ : پېرودلې)] اخستے شوے ، خريد کړے ـ بيه کړے ، پېرودے

**پېرودنګ** :- (پېرو + دْ + نْ + گْ) [اف : پ (قاموس) حمص ] و ـ پېرودنه

**پېرودنه** :- (پېرو + دْ + نَه) [ پ ، حمص] بيه کونه ، خريد کونه ، پېرو دنګ۔

**پېرودُونکے** :- (پېرو + دُوْ + نْ + کَے) [ پ ، اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پېرودُونکي (مؤ : پېرودُونکې) ] خريد کوونکے ، اخستونکے ، بيه کوونکے۔

**پېرودے** :- (پېرو + دَے) [پ ، مف، مذ، وا، ج : پېرودي (مؤ : پېرودې)] و ـــــ پېرودلے

**پېروډي** :- (پې + رو + ډِيْ) [ انګ ، اس ، مؤ] د يو ادبي تخليق طرز چې پکښې د څۀ مشهور نظم يا نثر نقل د ټوقې په ډول اوکړے شي۔

که مرئې مې زر خريد ګرځي بېشماره
د خپل يار تـه زر پېرد دے د حبش يم خوشحال خان

**پېروزه** :- (پېرو + زَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ،ج : پېروزې] فېروزه ، يو قسم قيمتي کانړے۔

**پېروزے** :- (پېرو + زَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پېروزي] صافي ، جاړن ، هغه کپړه يا ټوکے چې لوښي يا سامان پرې صفا کېږي۔

**پېروړه** :- (پې + رْ + وَ + ړَه) [ پ ، (ظفر) اس ، مؤ ، وا ، ج : پېروړې] دُرشل ، درسال۔

**پېرول** :- (پې + رو + لْ) [ انګ ، اس ، مذ] ضمانت ، په خاص شرط د قېدي د جېل نه رها کول ، قولي رهائي۔

**پېروڼه** :- (پې + رو + نَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پېروڼې ] د ګـانړې مېدان چې غوايۀ پکښې ګرځي۔

**پېرُونکے** :- (پې + رُوْ + نْ + کَے) [ پ ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پېرونکي، (مؤ : پېرونکې) ] بوټوونکے ، وودونکے ، پيونکے۔

**پېرونه** :- (پې + رْ + وْ + نَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] پېرونې ، پريمنې ، څومبک ستوري ، پروُونې۔

**پېروزنې** :-(پې + رْ + وْ + نې) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] و ــ پېرونه

ــــــ **پر بوتل**:- (اص) پېرونې ډوبېدل۔

ــــــ **لګېدل**:- (اف) اص ـ پېرونې ډوبېدل ، هر کله چې سحر په خړه کښې پېرونې ډوبېږي نو د خزان موسم شروع کېږي۔

ــــــ **وهل**:- (اف) اص ـ د مېوې سختېدل۔

**پېرونې**:- (پې + رُوْ + نې) [ پ ، اس ، مؤ] څومبک ستوري ، پرېمنې

پـه هوا به هسې غرقې لاړې شونې
چې ليدے به په اسمان لکه پېرونے حميد

**پېروي** :- (پې + رَ + وِيْ) [ فا ، اس ، مؤ ] تقليد ، پـه چا پسې تلل ، د چا حکم منل ، اطاعت۔

په هر شان ئې خادي کړه زړۀ ئې غواړي
لکـــه کشـــر پــېروي کا د ســــردار مصري خان

ــــــ **کول**:- (اص) اطاعت کول ، حکم منل۔

**پېروے** :- (پې + رَ + وْے) [ پ ، اس ، مذ] پروے ، ارياش ، د شودو دپاسه جمع شوې ملائي۔

له هغه مخه څوک څنګه بوسه اخلي
چې ئې مخ وي د اُومــو پېو پېروے حميد

**پـر سـترګو پېـروے اوښـتل** :- (اف) اص (۱) پـه سـترګو پـرده راتلـل ، ړندېدل (۲) غصه کېدل ، په سترګوپېروے ورته راتلل۔

**پر سترګو پېروے ورته راتلل**:-(اف) اص ـ و ــ پر سترګو پېروے اوښتل

**پېروي خوړل** :- (اص) په ناز و نعمت ژوند تېرول۔

**د اُومو پيو پېروے** :- (اص) (۱) ډېر نرم ، پوست (۲) زيات ښائسته

**سترګو پېروے نيول** :- (اف) اص ـ (۱) ړندېدل ، (۲) ډېر وړے کېدل ، د لوړې سترګې توري توري کېدل۔

**پېره** :- (پې + رَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پېرې ] (۱) ګـردش ، چکـر ، راتګ (۲) ځل ، وار۔

د نسيم پـه څېرو پېره په باغ زما کړه
د اُميد بروسه غنچه مې په خندا کړه حميد
تۀ ورځه په نجاست باندې پېرے کړه
د ګلزار لـــه ګلو څۀ غواړې ګونګټه خوشحال

ـــــ **اچول**:- (اص) راتلل ، چکر لګول

ـــــ **برابرېدل**:- (اص) (۱) د جوپې سره د تلو سمون راتلل ، (۲) په تجارت کښې ګټه لاس ته راتلل.

ـــــ **په پېره**:- (اص) وار په وار ، په نمبر نمبر ، جوپه په جوپه.

ـــــ **خطا کېدل**:- (اص) (۱) پېره نهٔ برابرېدل (۲) په تجارت کښې ګټه لاس ته نهٔ راتلل (۳) نخښه خطا کېدل (۴) نارينه اولاد په ځاے لور زېږېدل.

ـــــ **راوړل**:- (اص) څهٔ سامان رارسول.

ـــــ **کوټه کېدل**:- (اص) د پېرې وار خطا کېدل ، پېره نهٔ برابرېدل

ـــــ **منل**:- (اص) په چا پسې وار نيول.

ـــــ **موندل**:- (اص) وار موندل.

ـــــ **وړل**:- (اص) د تجارت سامان د جوپې سره بل ځاے ته رسول.

**په پېره تلل** :- (اص) د تجارت په غرض د جوپې سره تلل.

**پېره**:-(پې + رَه) [ پ ، فا : پهره ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پېرې ] پاره ، څوکۍ

له سپېرو سره چې څوک کښيني سپېرهٔ شي

که هــر څــو پــه تخت و بخت باله پېره شي حميد

ـــــ **بجاؤ کول**:- (اص) (۱) څوکۍ کول (۲) د څوکۍ وار تېرول

ـــــ **درول**:- (اص) په څوکۍ څوک مقررول ، د چا د حفاظت دپاره څوکۍ اودرول.

ـــــ **درېدل**:- (اص) څوکۍ مقررېدل.

ـــــ **کول**:- (اص) (۱) څوکۍ کول ، څارنه کول (۲) په پېره تلل ، د جوپې سره د تجارت په غرض تلل.

ـــــ **کېدل**:- (اص) څوکۍ کېدل

ـــــ **ورکول**:- (اص) (۱) پېره کول ، څوکۍ کول (۲) وار ورکول.

**پېه پېره اُودرېدل** :- (اص) په څوکۍ ختل ، په پهره مقررېدل

**پېرې ته تلل** :- (اص) (۱) څوکۍ ته تلل (۲) جوپې ته تلل ، د تجارت په غرض قافلې سره تلل.

**پېره دار** :- (پېره + دا + رْ) [ پ ، اس ، مص ، مذ ، وا ، ج : پېره داران ( مؤ : وا : پېره داره ، ج : پېره دارې ] څوکيدار ، پهره دار

**پېرهن** :- (پې + رْ + هَ + نْ) [ فا ، اس ، مذ ] قميص ، کرته ، خت

اوس دې اور راباندې بل کړهٔ په ستنه شه

چې لـــوګے دې ننه نـــهٔ وزي پېرهن ته خوشحال

**پېرے** :- (پې + رَے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېرې ، پېريان ] پرے ، جن ، پېټه بلا.

کوم سرود به که له زړهٔ سره په ورد کښې

د ســـرو مهر بـــه غواړې په پېرو کښې حميد

**پېريـــان** :- (پـــې + رْ + يـــا + نْ) [ اف : پ (قـــاموس) اس ، مـــذ ، وا ، ج : پېريانان (مؤ ، وا : پېريانه ، ج : پېريانانې) ] پېرے ، جن

ـــــ **پاڅول**:- (اص) (۱) پېرے لرې کول ، کله چې په چا پېريان کښېني نو د پېريـــانو عامـــل ئـــې پـــه دم و درود او څابنـــت تعويـــذ پـــاڅوي (۲) ورانکارے بنيادم.بنيادم په وهلو وهلو سمول.

ـــــ **پـر راتلـل**:- (اص) (۱) د پېريـــانو نيـــول ، لېـــونے کېـــدل ، پېريـــان کښېناستل ، (۲) زيات سوختېدل.

ـــــ **کښېناستل**:- (اص) (۱) لېونے کېدل (۲) ډېر غُصه کېدل.

ـــــ **نيول**:- (اف) اص.و ـــــ پېريان پرې راتلل.

**پـر ستړګو پېريان راتلل** :- (اف) اص ، ډېر زيات غصه کېدل ، سخت سوختېدل.

**پېريانو ورته نيول** :- (اف) اص.په چا زيات غصه کېدل ، چاته ډېر قهر او سوخت ښکاره کول.

**پېريان اوبهٔ** :- (پېريان + اُوْ + بهٔ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] ځلوبې ، په سخته ګرمۍ کښې په اوار ميدان کښې اوبهٔ په نظر دوکه وي ، سراب

**پېريان کټ** :- (پېريان + کَ + ټْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] يو قسم ځلور ګوټيز تور کاڼے چې په ځينې غرونو کښې موندے شي

**پېريان ګل** :- (پېريان + ګُ + لْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] يو قسم غرئيز بوټے.

**پېريـان وړولے** :- (پېريـان + و + ړو + لَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ ] پېريان ډولۍ ، شبدې پئۍ ، يو بوټے چې پئۍ پکښې وي.

**پېريانے** :- (پېر + يا + نَے) [ پ ، اس ، مذ (مؤ : پېريانۍ) ] (۱) هغه سړے چې پېريان پرې ناست وي ، پېريانو نيولے (۲) اوتر

ـــــ **کېدل**:- (اص) (۱) پېريان پرې راتلل (۲) اوتر کېدل.

**پېرياني** :- (پې + رْ + يا + نِيْ) [ اف : پ (قاموس) ص ] پېريتوب

**پيـري** :- (پـيْ + رِيْ) [ پ ، اس ، ص ، مـؤ ، وا ، ج : پيـرئ ] پيرتـوب ، پيروالے ، استانه داري ، د مريدانو رهنمائي.

الف بې ئې لوستې نهٔ شېخي پيري کا

د جـــاهـــل لـــه مشيخت توبه توبه مصري خان

ـــــ **مريدي**:- (اص) د پيرۍ کار ، د پيرانو مريدانو تعلق.

**پيري** :- (پَيْ + رِيْ) [ فا ، اس ، مؤ ] بوډا توب ، زوړوالے ، ګړېبدنه

پـــه ځـــوانۍ کښې د پيري خصلت پيدا کړه

تل به پائي په دنيا کښې مست و ځوان څوک معزالله خان

**پېرېـدل** :- (پـې + رې + دْ + لْ) [ پ ، مـص لا ] (۱) اخسـتے کېـدل ، پيـه کېدل (۲) ب ،خ.د يو قيمت جوګه کېدل يا ورتيا لرل.

اوس مې قدر يو په سله يو په زر دے

چې اول پـــه څـــو درمـــه پېرېدلـم خوشحال

**پېړ** :- (پِيْ + ړْ) [ پ ، (بنو) اس ، مذ ] پوړ ، پروړه ، بُوس

**پېـړ** :- (پـې + ټْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ] (۱) غـټ ، مضـبوط ، (۲) د غنمـو سـپين پـوړ يـا بـوس (۳) د لرګي لنګرۍ يـا ټُـوټې (۴) د شربت راويستلو کار.

**پېړته** :- (پې + ړْ + تَه) [ پ (ظفر) اس ، مذ ] (۱) د کوړته ضد ، خاتيځ ، نمر خاتهٔ (۲) بنو : پاس ، اوچت.

**پېـړزه** :- (پـې + ړْ + زَه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پېـړزې) د خاورو ډېرۍ.

**پېړغو** :- (پې + ړْ + غو) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــــ پرغو

**پېړمار** :- (پې + ړْ + ما + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ] ګانيي مار ، د ګنې نه شربت ويستونکے.

**پېړمن** :- (پې + ړْ + م + نْ) [ اف : پ (قاموس) س ، ص ، مذ] نا راسته ، لټ ، سُست.

**پېړو** :- (پې + ړو) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د شپون يا اجړې مزدوري

**پېړوالے** :- (پې + ړْ + وا + لَے) [ پ (ظفر) ص ، مذ] غټوالے ، سختوالے ، مضبوطي.

**پېړوده** :- (پې + ړو + دهٔ) [ اف : پ (قاموس) ص ] سخت ، ځيږ.

**پېـړه** :- (پـې + ړَه) [ پ ، ه : پېـړا ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پېـړې ] (۱) مـوټے قـدرې لامـدهٔ کـړې اوړهٔ چـې ډوډۍ تـرې پخـولے شـي .(۲) يـو قسـم متهائي چې د شودو او شکرې نه جوړېږي.شپېړه.

ـــــ **په لاس**:- (اص) ناوزګار ، ډېر مصروف.
**د پېړۍ کونه پرېکول** :- (ظفر) اص .ډېره شومتیا کول ، زیاته بخیلي څرګندول.
**پېړۍ** :- (پې +ړْ+ۍ) [پ ،اس ، مؤ] چوکۍ ، د ناستي کټولۍ یا کټکې د پالنګ او د پېړۍ حاجت ئې نشته
د یارانو نشستن د زړۀ په تخت دے رحمٰن بابا
**پېـړۍ** :- (پېـِ + ړَ + یَـې) [پ (ګـن) اس ، مـؤ] د بتېـرانـو یـا مرزانـو د جنګولو په وخت د تماشګیرو جوړه کړې دائره.
ـــــ **تړل**:- (ګن) اص.د بتېرانو یامرزانو د جنګولو دپاره دائره جوړول.
ـــــ **کېدل**:- ګن اص.د بتېرانو یا مرزانو جنګېدل.
**پېړۍ** :- (پې + ړْ+ۍ) [پ ، اس ، مؤ] (۱) د عمر یوه مقرره موده ، یو نسل (۲) ډېره موده.
تر اوُدد پېر یو پورې
واړه مړۀ په تېغ او تبر خوشحال
ـــــ **اوړېدل**:- (اص) (۱) نسلونه بدلېدل (۲) ډېره موده تېرېدل ، پېړۍ تېرېدل.
ـــــ **پر پېړۍ**:- (اص) نسل په نسل ، پُشت په پُشت ، پېړۍ په پېړۍ
ـــــ **په پېړۍ** :- (اص) و ـــــ پېړۍ پرې پېړۍ
ـــــ **تېرېدل**:- (اص) و ـــــ پېړۍ اوړېدل.
ـــــ **رژول**:- (اص) عُمرونه تېرول ، پېړۍ اړول ، صدۍ تېرول.
ـــــ **رژېدل**:- (اص) عمرونه تېرېدل ، صدۍ تېرېدل.
ـــــ **وهل**:- (اص) ایري وهل.
**پېړۍ پوه** :- (پېړۍ + پو + ه) [اف:پ،اس، مذ] پېړۍ شړُونکے، تاریخ دان
**پېړۍ شړونکے** :- (پېړۍ+ شَ +ړُوْ + نْ + کَے) [اف : پ ،اس، مذ] و- پېړۍ پوه
**پېړي مار** :- (پې + ړي + ما + رْ) [پ ،اس ، فا ع ، مذ ، وا] د اوړو پېړې جوړوونکے ، په تنور هغه کار کوونکے چې پېړې جوړوي.
**پېز** :- (پې + ز) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] رفو، ګنډون
چې مې خاوره که رېز رېز
د آدم پــــــه جـــــامه پېز احمد شاه بابا
ـــــ **کول**:- (اف) اص.رفو کول ، ګنډل ، پېرل.
**پېزار** :- (پې + زا + رْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېزارونه] څپلۍ ، پڼې ، بوټان ، کوښې.
ـــــ **سمول**:- (اص) (۱) پېزاربرابرول ، چاته پېزار پڼو تـه برابـر کېښېښـول (۲) خدمت کول ، تابعداري کول (۳) خوشامنده او چاپلوسي کول
**پېزر** :- (پې + زَ + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو خړ رنګې بوټے چې یو لېشت برابر اوچتېږي.
**پېـزر** :- (پَې + زَ + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو قسم بنکلے کاڼے چې بلوري ، مرډکي یا ګیني ترې جوړولے شي.
**پېزکے** :- (پې + زْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] پیازکے.
**پېزل** :- (پې + زْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] (۱) پُوزے یا انډېرے جوړول (۲) رفو کول ، ګنډل.
**پېزلے** :- (پې + زْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : پېزلي (مؤ : پېزلې)] رفو کړے ، ګنډلے.
**پېزنګ** :- (پې + زَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ پېزنه
**پېزنه** :- (پې + زْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] پېزنګ ، رفو کونه ، ګنډنه.

**پېزو** :- (پې + زُوْ) [پ ، اس ، معرفه] د بنوں په ضلع کښې د یو کلي نوم
**پېزو** :- (پې + زُوْ) [پ ، اس ، ص] پوزمیر ، پېزه ور.
**پېـزوان** :- (پـې + زْ + وا +نْ) [پ ، اس ، وا ، ج : پېزوانونـه] (۱) د پـوزې کالے ، پېزواند (۲) هغه رسۍ چې د څناور پوزې او سرته اچولے شي ـ نتـه (۳) ب ، خ : د پـوزې خلے یـا ډنډر (۴) پېزوانـدے د څپـلـو هغـه تسمه چې د دوۀ ګوتو په مېنځ کښې راځي (۵) د بـوقې هغـه حصـه چې رسۍ یا پړے پرې تړلے شي (۲) د چائنک یا کوزې د کشکول یا سُنت زنځیر (۷) هغه غابنور لرګي چې د سخي په خولۀ ئې دې دپاره ترې چې مور اونۀ روي.
صـــدف لاس پـــــه دعـــا اونیسي دا وائي
چې که ځاے مې د ګوهر و ستا پېزوان شي معزالله خان
ـــــ **اچول**:- (اص) (۱) پېزوان په پوزه کول (۲) تابعدار کول ، په ځان پسې راکښل ، تابع کول ، قابو کول ، په خپله مرضۍ بوول.
ـــــ **په پوزه کول**:- (اص) د زنانا ؤ د کالي په ډول پېزوان پوزې ته اچول.
ـــــ **ځنګول**:- (اص) (۱) پېزوان پوزې تـه اچـول ، پېـزوان سـورول ، (۲) ناز نخرې کول.
ـــــ **راکښل**:- (اص) چاته زور ورکول ، څوک په خپله تابعدارۍ مجبورول
ـــــ **سورول**:- (اص) و ـــــ پېزوان ځنګول.
**پېزواني کول** :- (اص) (۱) پېزوان وراچول (۲) تابع کـول ، قـابو کـول قـابو کښې راوستل.
**د پوزې پېزوان کېدل** :-(اص) یو څیز نه نۀ خلاصېدل ،یو شے په چا پـورې تړلے کېدل.
**د پېزوان نیول** :- (اص) (۱) پېزوان راکښل (۲) په قابو کښې ساتل
**سُورکے پېزوان** :- (اص) سور رنګې پېزوان ، بنکلے او ډولے پېزوان د سرو زرو جوړ پېزوان.
**پېزواند** :- (پې+ زْ+وا + نْ+ دْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېزواندونه] و- پېزوان
بخت دے چې ئې اوس ستا له لبانو سره څنبمه
تا مې ننـــــه زړۀ پـــــه ســرۀ پېزواند چې اوڅاڼۀ خوشحال
**پېزواندے** :- (پې + زْ + وا + نْ + دَے) [پ (ظفر) اس ، مذ] (۱) هغه څاروے چې پوزې ته ئې پېزوان اچولے شوے وي.(۲) د پېزار پېزوان
ــــ **کول**:- (اص) (۱) د څاروي پوزې ته نته اچول (۲) څوک مجبورول او بې وسه کول
ـــــ **کېدل**:-(اص) (۱) د څاروي پوزې ته نته اچولے کېدل (۲) مجبورېدل او بې وسه کېدل.
**پېزوانک** :- (پې + زْ + وا + نَ+ کْ) [اف ، پ (قـاموس) اس ، مـذ] د پېـزار هغـه تسمه چې د دوۀ ګوتو په مېنځ کښې راځي.
**پېزوانـے** :- (پېـز + وا + نَ + یَـې) [پ ، اس ، مـؤ] (۱) هغـه پېغلـه چـې پېزوان ئې اچولے وي.(۲) معشوقه ، دلبره ، یاره ، نګاره.
**پېزوانے** :- (پې + زْ + وا + نَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو قسم لرګے.
**پېزوندائے** :- (پې +زْ + وَ + نْ+ دا ئے) [پ (مر) اس ، مذ] چرړُوکے سپرخے ، هغه ورکوټے لرګے چې د یوې په پېوند کښې لګولے شي.او په پړې باندې د ژغ سره تړلے کېږي.
**پېزوُنکے** :- (پـې + زُوْ + نْ + کـے) [اف : پ (قـاموس) فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: پېزونکي (مؤ : پېزونکې)] رفو کوونکے ، ګنډونکے.
**پېزه** :- (پې + زَه) [پ (ب، خ) اس ، مؤ] (۱) پوزه ، پزه (۲) د غرۀ څوکه.
که مې بې له تانه نورې یارۍ اوکړې
راتــــه ګوره یا څکوم حدیث په پېزه خوشحال

**پېزه** :- (پې + زَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د بولو یا تشو متیازو د څڅېدلو مرض.

**ـــــ کېدل**:- (اف) اص. تشې متیازې څڅېدل.

**پېزے** :- (پې + زَے) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] مړاوے ، جینجړ

**ـــــ کېدل**:- (اف) اص. مړاوے کېدل ، جینجړېدل.

**پېزي** :- (پې + زَ + يې) [پ ، اس ، مؤ] پیزې ، هجه ، په ټکو ، په جوړ

**په پېزۍ کول** :- (اص) په ټکو ویل ، په هجو ویل ، په جوړ ویل ، په پېزې ویل.

**په پېزۍ ویل** :- (اص) (۱) و ـــــ په پېزې کول (۲) بیا بیا ویل ، بار بار سپارښتنه کول.

**پیزي** :- (پيْ + زِ + يْ) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] و ـــــ پېزي

**ـــــ توري** :- (اف) اص. حروف تهجي ، د الف بې پټی.

**پیزي توب** :- (پيْ + زِيْ + تو + بْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] جینجړ والے ، مړاویتوب ، پیزي والے.

**پیزي والے** :- (پيْ + زي + وا + لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــــ پیزي توب.

**پېژاند** :- (پې + ژا + نْ + دْ) [پ ، ص ، مذ (مؤ : پېژانده)] پېژند ، د پېژندګلي ، پېژندګلو ، واقف.

هر سړے په روزګار پېژاند شي هوښیاره
دا محک دے هم مخصوص د آدم زاد مصري خان

**پېژاندۀ** :- (پې + ژا + نْ + دۀ) [پ،اس،مؤ] پېژندګلي ، پېژندنه، پېژندون.

**پېژندګلي** :- (پېژند + ګْ + لِيْ) [پ ،اس،مؤ] پېژندګلوي. تعارف.

په تحقیق پېژنګلي په نور څۀ نۀ شي
بې له کاره چې دې پر بوځي په انسان مصري خان

**پېژندل** :- (پې + ژْ + نْ + دْ + لْ) [پ ، مص مت] واقفیت لرل ، شناخت لرل.

پېژندل د خدائے رسول ورلره بس دي مصري خان

**پېژندلے** :- (پې + ژْ + نْ + دْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پېژندلي (مؤ : پېژندلې] شناخت کړے ، حال معلوم کړے.

چې ئې حق د اُستاد نۀ وي پېژندلے
سرمایه د دین هغه سړے د بخائي مصري خان

**پېژندنګ** :- (پې + ژْ + نْ + د + نْ + ګْ) [اف :پ (قاموس) حمص] و- پېژندنه.

**پېژندنه** :- (پې + ژْ +نْ + دْ + نَه) [پ ، حمص] شناخت کونه ، معلومونه ، پېژندنګ.

**پېژندُون** :- (پې + ژْ + نْ + دُوْ + نْ) [پ ، اس ، مذ] و ـــ پېژندګلوي.

**پېژندُونکے** :- (پې + ژْ + نْ + دُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پېژندُونکي (مؤ: پېژندُونکې) ] شناخت کوونکے ، د چا د حالت معلومات لرونکے ، پېژندونے ، واقف.

**پېژندونے** :- (پې + ژْ + نْ + دُوْ + نَے) [پ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پېژندوني ( مؤ : پېژندونې) ] و ـــ پېژندونکے.

**پېژنـدوئے** :- (پې + ژَ + نْ + دوئـے) [پ ، اس ، ص ، مـذ ، (مـؤ ، وا: پېژندویه ، مؤ ، ج : پېژندوئې) ] واقف ، شناسا.

**پېژوۍ** :- (پې + ژْ + وَۍ) [پ (ظفر) اس ، مؤ] بلې ، چچه.

**پېـړل** :- (پې + ړْ + لْ)یا ګْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت ] څیـرل تراشل ، پېکول. ټوټې ټوټې کول.

**پېړلے** :- (پَې + ړَ + لے یا ګَ + لَے) [اف : پ (قاوس) مف ، مذ ، وا ، ج: پېړلي (مؤ : پېړلې) ] څېرلے ، تراشلے ، پربکړے.

**پېړنګ** :- (پې + ړَ + نْ + ګْ یا ګَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پېړنه

**پېړنه** :- (پې + ړْ + نَه یا ګْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] څیرنه ، تراشنه ، ټوټې ټوټې کونه.

**پېړُونکے** :- (پې + ژُوْ + نْ + کَے یا ګُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پېړُونکي (مؤ : پېړُونکې)] څیرونکے ، ټوټې کوونکے ، تراشوونکے.

**پېړُونے** :- (پې + ژُوْ + نے + یا ګُوْ + نے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج : پېژُوني] ټوکه ، د غوښې د ټوټې ټوټې کولو اله

**پیس** :-(پِيْ +سْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] کبر ، مغرورتیا ، تکبر

سړے وران شي له ابلیس
غوځ د پیس په کټارو شي

**په پیس کښې کېدل** :- (اف) اص. کبر کول ، کبرجن کېدل.

**پیسانے** :- (پِيْ +سا + نَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، ج : پیساني] پیسانړے ، خڅوڅکے ، بکسکے ، پُوټسکے ، لړ څیز ، ذره.

**پیسـتړي** :- (پې + سْ + تْ + رِيْ) [انګ ، اس ، مؤ ، وا ، ] پېسـتړۍ پېسـتړیانې] یو قسم متهائي چې د مېدې ، کُچ او شکرې نه جوړېږي

**پیسړ** :-(پې + سْ + ړْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ ، وا: پېسړه، ج : پېسړې) ] بدمخے ، بدرنګ ، سخامخے ، بدشکله.

**پیسکوړک** :- (پې + سْ + کو + ړْ + کْ) [پ (سو) اس ، مذ] باد وهلے وړے ، هغه وړے چې په څۀ سبب اوچ شي او په دانه کښې ئې مغز نۀ وي. پینکه دانه ، د مغز نه خالي غوز.

**پیسمن** :- (پِيْ + سْ + مْ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا: پیسمنه ، ج : پیسمنې) ] مغرور ، کبرجن.

**پیسمے** :- (پې+ س + مے) [پ (ګن)اس مذ ، وا ، ج : پیسمي] پښمنے ، پرشمے

**پیسلے** :- (پِيْ + سْ + لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : پیسلي] هغه ځاے چې د اوبۀ خور یا پنوکے په وخت اوچ پاتې شي

**پیسه** :- (پې + سه) [پ ، ه : پیسا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پیسې] (۱) یوه وړه سکه ، په پاکستاني روپۍ کښې سل پیسې وي. (۲) پخوانۍ وړه سکه چې په انه کښې څلور او روپۍ کښې څلور شپېتۀ پیسې وي.

په زړګې باندې د تور سري داغ شي
چې دې تـوره یا پیسه وزي له کوره خوشحال خان

**کوټه پیسه** :- (اص) بېکاره پیسه ، نۀ چلېدونکې سکه ، بې قیمته

سپینې ږېرې زما عشق کوټه پیسه کړۀ
هېڅ ئې نۀ قبلوي ښکلي په سودا کښې (عبدالحمید)

**د پیسې سل** :- (اص) (۱) په یوه پیسه یو سل (۲) ډېر ارزان ، وړیا.

**پیسه** :- (پيْ + سَه) [پ (ښتني) اس ، مؤ] پېرشاني ، شبخۀ ، د وېښتو لاړ.

**پیسـه کونے** :- (پیسـه + کـو + نَے) [پ ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج: پیسـه کوني] شوم ، بخیل ، په جبب ټینګ ، په پیسه مئین.

**پیسے** :- (پِيْ + سَے) [پ ،ص ، مـذ ] بـرګے ، . د بـرص پـه مـرض رنځور ، هغه څوک چې څرمن ئې ځاے په ځاے سپینه برګه وي.

**پیش** :- (پيْ + شْ) [پ ، اس ، مذ ، وا] نر پیشو ، بلیکے ، پیشے ، نرغوټ.

پې غـــوړي واړه مـــردار کا
د خپل کور پیش دې غل مه شه خوشحال

**پېش** :- (پې + شْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېشُونه] هغه علامت چې څۀ حرف دپاسه د نیم واؤ د آواز ظاهرولو دپاره لیکلے شي.

**پېش** :- (پې + شْ) [فا ، ص ، مذ] (۱) پېښ ، دوڅار ، مخامخ ، وړاندې (۲) حاضر موجود.

خپلخانه مې شــوه په غرونو
پرې کارونه پېش عجب شول      خوشحال

**پېش و پس**:- (اص) وړاندې روستو ،

**پېشاب**:- (پې + شا + بْ) [فا ، اس ، مذ] تشې متيازې ، بولې

فــرق د پـــاكــو د ناپاكو اوبو نهٔ كا
كه اوبهٔ ئې ګډې وډې په پيشاب وي      رحمٰن بابا

**پيشاړه**:- (پيْ + شا + ړَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: پيشاړې] (۱) ملنډه ، ټوقه ، مسخره (۲) حمله.

زهٔ فقير يـــــم د مهرانو لائق نهٔ يم
بې بې مه كوه په ما پورې پېشاړه      عبدالغفار سواتي

**ـــــ كـول**:- (اص) (۱) ټـوقې كـول ، ، ملنـډې كـول ، مسـخرې كـول ، (۲) حمله كول.

**پيشاك**:-(پيْ+ شا+ كْ) [اف:پ (قاموس) اس، مذ] پيشک، د سپوږمۍ مرض

**ـــــ كبدل**:- (اص) د سپوږمۍ په مرض اخته كېدل.

**پېش امام**:- (پې + شْ + اِ + ما + مْ) [فا ، اس ، ص ، مذ] امام ، هغه عالم چې خلقو ته د جمعې نمونځ وركوي.

**پېشانه**:- (پې + شا + نَه) [اف : پ (قاموس) ، اس ، مؤ] (۱) ښكلې كور ، رنګيز كور ، (۲) پستو ، ګودام.

**پيش باده**:- (پيْ + شْ + با + دَه) [پ (سو) اس ، مؤ] هغه زيات مېده شوي بُوس چې د غنمو يا شولو خال خال دانه پكښې موندے شي. زمينداران ئې خپلو ناظرانو يا شاخپلانو ته وركړې هغوي ئې ځان ته صفا كړي.

دا پينځهٔ منه جور كه رښتيا وايم
وركــوي خانان فقير ته پيش باده      ميا وسيم

**پېش بند**:- (پې+شْ+ بَ + نْ + دْ) [فا ، اس ، مذ] هغه نوار يا تسمه چې د اس د تانګ او د ولُوني په مېنځ كښې اچولے كېږي.

**پېش بندي**:- (پېش + بَ + نْ + دِيْ) [فا ، اس ، مؤ] د اول نه د څهٔ خبرې بندېز كول ، دور انديشي.

**پيش پرانګ**:- (پيْ + شْ + پْ + را + نْ + ګْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: پيش پرانګان (مؤ ، وا: پيش پرانګه ، ج : پيش پرانګې ]و- پړان پيش

**پيش پرۍ**:- (پيش + پْ + رَ + يۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د بلبل په شان يوه مرغۍ چې په سر ئې قرقره وي.

**پيش پو**:- (پيْ + شْ + پو) [پ (صو) اس، مؤ] پيش قُرے، الې جيلې ، شاډوله

**پيش پيش**:- (پيْ + شْ + پيْ + شْ) [پ ، اس ، صو] (۱) د پيشـو د بللو آواز (۲) ماشومانو ته د اودس ماتې په وخت مور پيش پيش وائي.

**پيشـت**:- (پـيْ + شْ + تْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] (۱) د پيشـو د شړلو اواز ، پيشته (۲) د خيشت ټكي سره يو ځاے هم راځي. لكه: خيشت پيشت.

**پيشترے**:- (پيْ + تْ + رَے) [پ، اس ، مذ ] و ــــ پېچلره.

**پيشتكے**:- (پِيْ + شْ + تَ + كَے) [پ (خل) اس ، مذ] اندرپايه ، پوړۍ

**پيشـتول**:- (پـيْ + شْ + تْ + وْ + لْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: پيشتولُونه] (۱) د كوټې يا د دالان شهتير چې دپاسه نور لرګي پرې اچولے شي. (۲) چت (۳) بلۍ ، چجه.

**پيشته**:- (پِيْ + شْ + ته) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ــ پيشت.

**ـــــ كول**:- (اف) اص. پيشو شړل ،

**پيشته مغز**:- (پِيْ + شْ + تَه + مَ + غَ + زْ) [پ ، اس ، مذ] و ــ پِسته

**پيشخوټ**:- (پيْ + شْ + خْ + وْ + ټْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پيشو خوټ ، كنډ ، كانډ ، ګُوري.

**پېش قدمي**:- (پې + شْ + قَ + دْ + مِيْ) [فا ، اس ، مؤ] حمله ، چړهائي ، چپاؤ.

**پيش قُرے**:- (پيْ + شْ + قُ + رَے) [پ (سو) اس ، مذ] و ــ پيش پو

**پيش قوزه**:- (پې + شْ + قو + زَه) [پ ، فا : پېش قبض ، اس ، مذ] چاړهٔ ، خنجر ، جمدر.

**پيشک**:- (پيْ + شَ + كْ) [پ (ظفر) اتس ، مذ] و ــــ پيشاک

**پيشكار**:- (پې+شْ+كا +رْ) [فا، اس، مذ، وا، ج: پېشكاران] خدمتګار

په دربار كښې ئې عزت د نور چا نشته
پېشكاران ئې دي بـد ذات او بد سګار      خوشحال خان

**پيشكارل**:- (پيْ + شْ +كا + رْ + لْ) [اف: پ (قاموس) مص مت] پيشو رابلل.

**پيشكارل**:- (پيْ + شْ + كا + رْ + لْ) [پ ، مص مت] ماشوم تـه د متيـازو كولو په وخت پيش پيش وئيل ، سُكارل.

**پيشكارلے**:- (پيْ + شْ + كا + رْ + لَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: پيشكارلي] پيشو رابللے شوے.

**پيشـكارنه**:- (پـيْ + شْ + كـا + رْ + نـه) [اف : پ (قـاموس) اس فـا ع ، مذ ،وا ، ج : پيشكارونكي (مؤ : پيشكارونكې) ] پيشو رابلُونكې.

**پيشـكش**:- (پـې +ش + كَ + شْ) [فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پېشكشـونه] نذرانه ، تحفه ، ډالۍ ، پېشكشي.

سر لرې خوشحال درته پېشكش كه دې پيكار دے
ښهٔ تـر دا نـور څهٔ چې د چا سـر راشي پكـار سـتا

**پيشكشي**:- (پېش + كَ + شِيْ) [پ ، اس ، مؤ] و ـــ پېشكش

نوره پېشكشي راسره نشته په فراق كښې
يـــاد لـــره به ورمه درد د سترګو په امان     خوشحال خان

**پيشـكنډے**:- (پـيْ + شْ + كُ + نْ + ډَے) [پ (سـو) اس ، ص، مـذ ، وا: ج: پيشـكنډې] (۱) پيشـونګړے ، پيشـونګُوړے ، پيشـنګوړے ، د پشـو وركوټے بچے ، بـل كوټے (۲) هغه ماشوم چې د مور نه ځيزونه پټوي او خوري ئې. (۳) هغه ماشوم چې هر چرته په مور پسې روان وي.

**پيشكه**:- (پيْ + شَ + كه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: پيشكې ] (۱) وړه پيشو يـا بليكۍ (۲) پيشـوګۍ ، پيشـۍ ، يـو چينجے چې د ونو پاڼې خوري.

**پيشكے**:- (پې + شْ + كَے) [اف : پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېشكيان] رنګروټ

**پيشګي**:-(پـې + شْ + ګـِيْ) [فـا ، اس ، مـؤ] (۱) سـائي ، د كـار كولـو نـه وړاندې وركړے شوے أجرت يا مزدوري (۲) د وخت نه وړاندې

**پيشګي اضافه**:- (پېشګي+ ا +ضا+ فَه) [فا تر ، اس،مؤ] د تنخواه سالانه ترقي چې د مقرر وخت نه وړاندې په ښهٔ كار كولو وركړے شي.

**پيش نامه**:- (پې + شْ + نا + مَه) [اف : پ ، اس ، مؤ] ايجنډا ، د غونډې يا كانفرنس نه وړاندې د بحث دپاره جوړ كړے فهرست

**پيشـګي نقـل**:- (پېشـګي + نَ + قَ + لْ) [فـا + تـر ، اس ، مـذ ، وا ، ج: پېشګي نقلُونه] د يو درخواست يـا عرضـۍ اولنـے نقل چې بـالا بـالا لوے عهدېدار ته استولے شي.

**پيشل**:- (پې + شْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] په څمڅه يا قاشوغه ښوروا يا بل ګرم ځيز يخول.

**پيشـلره**:- (پـيْ + شْ + لَ + رَه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : پيشلرې] يو قسم بوټے ، پيشترے.

**پيشــلمے**:- (پـې + شْ + لَ + مَـے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: پېشلمي] پېشمنے ، پرشمے ، پيسمے ، سحري.

ـــــ **کول**:- (اف) اص۔ پښمنے کول ، پرشمے کول ، پپسمے کول۔
ـــــ **کېدل**:- (اف) اص۔ پښمنے کېدل ، پرشمے کېدل ، پپسمے کېدل
**پښلے** :- (پې + شْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ (مؤ : پښلې)] په ځمځه يا قاشوغه يخ کړے شوے نرم څيز۔
**پښملو** :- (پِيْ + شْ + م + لَو) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و- پيش پړانګ۔
**پښمنډۍ** :- (پې + شْ + مْ + نْ + ډَۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] ټوقې ، وشتې ، پېغورونه۔
**پښمنے** :- (پې + شْ + مْ + نَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پښمني] و- پښلمے
**پيښنګ** :- (پِيْ + شَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د قافلې د سر ټټو يا قچر۔
**پيښنګوړے** :- (پيْ+شْ + نْ + ګْ + وْ + ړَے) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] پيشونګړے، بلې کوتے۔
**پيشو**:- (پِيْ + شو) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: پيشوګانې] پيشۍ۔ بليکۍ

مـــزرے ښکار کا د ګادزد
پيشو ګرځي ښکار د مږک کا    خوشحال

**پيشوګان تلل** :- (اص) (۱) ګذاره نۀ کول ، (۲) بدګماني کول ،متل :- ''که ګذران دې پکار وي نو پيشوګان مه تله''۔
**د اُوړو پيشو سازول** :- (مح) (۱) څوک په چل ول او ټګۍ تيرې دوکه کول او يرول (۲) هسې سر پوره کول ، (۳) چاته په سترګو کښې خاورې اچول۔ متل :- ''د اوړو پيشو به سازه کړم خو مياؤ به څوک کوي۔''
**د پيشو پربوان کول** :- (اص) خبره اوږدول۔
**د پيشو لنګون ترې جوړول** :- (مح) اسان کار ګرانول ، معمولې خبره ډېره اوږدول
**د پيشو مرګ ترې جوړول** :- (مح) يوه خبره ډېره اوږدول ، څوک فېصلې په انتظار کړول۔
**پيشـوا** :- (پـې + شْ + وا) [فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پيشـوايان] لار ښودونکے ، رهنما۔

که دې بيائي په تحقيق آبِ حيات ته
د هيچا ســره پيشوا مــه شه ناکس    مصري خان

**پيشــواز** :- (پـې + شْ + وا+ زْ) [فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پيشــوازونه] (۱) خلکې ، هغـه ګګره شان چې لښتې يا ګډووُنې ئې د نخا په وخت اچوي (۲) ښکلې خلکه چې زنانه ئې اچوي ، پيش واز۔

اهل پــه خـــوارۍ کښې نــا اهل په اعزاز
څيرې خت مېرمنې خدمتګارې په پيشواز    خوشحال خان

**پيشوائي** :- (پې + شْ + وا+ ئيْ) (۱) لار ښودنه ، رهنمائي (۲) د چا د سفر نه واپس راتلو په وخت په لاره کښې سترې مشې کولو ته تلل
**پيشو بـازي** :- (پيشـو + بـا +زيْ) [اف : پ (قـاموس) اس، مـؤ] خوشـامنده ، چاپلوسي۔
ـــــ **کول**:- (اف) اص۔ (۱) د پيشو لوبې کول (۲) خوشامنده او چاپلوسي کول۔
**پيشو پړانګ** :- (پيشو + پ+ ړا +نْ+ ګْ) [پ ، اس ، مذ] و ـــــ پيش پړانګ۔
**پيشو پړۍ** :- (پيشو + پْ+ ړَۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د رسه کشۍ لوبه
ـــــ **کول**:- (اف) اص۔ د رسه کشۍ لوبه کول۔
**پيشـو خـوټ** :- (پيشـو + خْ + وْ + ټْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ]و ـــــ پيش خوټ
**پيشورز** :- (پې + شْ + وْ + رْ + زْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــــ پيشواز۔
**پيشوګۍ** :- (پِيْ + شو + ګَۍ) [پ ، اس ، مؤ] و ـــــ پيشکه۔
**پيشـول** :- (پـې + شَ + وْ + لْ) [پ ، مـص مـت] (۱) پـېش کـول ، وړانـدې کول ، مخکښې کول ، (۲) څوک په عدالت کښې حاضرول
**پيشـولګه** :- (پـيْ + شـو + لْ + ګـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج: پيشولګې] يو قسم وابنۀ۔
**پيشولمے** :- (پِيْ + شو + لْ + + مَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] جينجړ ، جنجړ۔
**پيشولنده** :- (پِيْ + شو + لَ + نْ + ده) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] يو قسم وابنۀ
**پيشو مالګه** :- (پيْ + شـو + مـا + لْ + ګـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] د ماشومانو لوبه چې پکښې د لويې سا ورزش کوي ، لنډے۔
**پيشو مېږي** :- (پيْ + شـو + مْ + پْ + ړَۍ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] د خاورو لوبه۔
ـــــ **کول**:- (اف) اص۔ د خاورو لوبه کول۔
**پيشونکے** :- (پې + شُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) فا ع ، مذ ، وا ، ج : پيشـونکي ، (مـؤ ، پيشـونکې) ] په ځمځـه يـا قاشـوغه ګـرم څيـز يخوونکے۔
**پښونګ** :- (پې + شْ + وْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و- پښونه۔
**پيشـونګړے** :- (پـيْ + شْ +نْ + ګْ + ړَے) [پ ، اص تصـغير ، مـذ] د پيشو بچے ، پيشونګړے۔
**پيشـونګړۍ** :- (پـيْ + شـو + نْ + ګْ + ړَۍ) [ (ظفـر) اس ، مـؤ] بـازي ، خربازي ، بوډا غانې۔
ـــــ **اړول**:- (اص) (۱) بـازۍ اړول ، خوبـازۍ کـول ، بـودا غـانې اړول (۲) خپل حالت زر بدلول۔
**پيشـونګړي** :- (پـيْ + شـو + نْ + ګْ + ړِيْ) [پ ، اس ،معـر] د ښښـور پـه تحصيل کښې د يو کلي نوم۔
**پيشونګوړے** :- (پِيْ + شو + نْ + ګُوْ + ړَے) [اف :پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــــ پيشونګړے۔
**پښونه** :- (پې + شَ + ْ + نَه) [پ ،حمص] (۱) پېش کونه ، وړاندې کونه ، پښونګ (۲) عدالت کښې حاضرونه۔
**پښـوونکے** :- (پـې + شَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: پيشـوُونکي (مـؤ : پيشـوُونکې) ] (۱) پـېش کـوونکے ، وړانـدې کوونکے (۲) په عدالت کښې حاضروُونکے۔
**پښوئ** :- (پې + شْ + وْ + ئ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] د لرګي غټه ځمځه۔
**پيشـه** :- (پې + شـه) [فـا ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پيشـې] (۱) هنر ، کسب دهندا (۲) نقل ، ټوقه (۳) عادت ، خوئي (۴) رنډيتوب

اُوبـۀ نـــۀ وينې اسپ لـه زمانې نه
که پيشه دې خپله که روزګار د صبر    معزالله خان

ـــــ **کول**:- (اص) (۱) نقل کول (۲) رنډيتوب کول۔
**پښه** :- (پيْ + شَه) [پ (وز) اس ، مؤ ، وا ، ج : پښې] څړيکه ، په مغزو اور بلېدنه ، مازغه خوټکېدنه۔
**پيښي** :- (پيْ + شَ + يَۍ) [پ (ګن) اس ، مؤ] (۱) پيشو ، بليکۍ (۲) د بوټو يو چينجے ، پيشوګۍ۔
ـــــ **پيښي کېدل**:- (اص) (۱) د پيشو په شان کېدل (۲) عـاجزي کول په خواست د چا نه ځۀ غوښتل۔
**د پيښي لنګوغ ځنې جـوړول** :- (اف) اص ـلنډ کـار زيـاتول ، لـږه خبـره اوږدول ، د پيشۍ مرګ ځنې جوړول۔
**د پيشانو سترګې تـړل** :- (اف) اص ـ(۱) د پيشو سترګې تـړل (۲) ډېره بخيلي او کنجوسي کول۔
**پيښۍ** :- (پې + شْ + يَۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) د پوزې نتـه ،

(۲) د ځرمنې همیانۍ.

**پیشی** :- (پيْ + شَ + يَی) [ پ (اُتمان) اس ، مؤ] یو قسم ورکوټی مار چې زهر ئې ډېر سخت وي.لوښتی.

**پیشـي** :- (پـيِ + شـيْ) [ فـا ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پېشـی ] (۱) حاضـري حضوري (۲) د مقدمې په عدالت کنبې تاریخ.

**پېشبدنګ** :- (پيِ + شيِ + دْ + نْ+ ګْ) [ اف : پ (قاموس) حمص] و - پېشبدنه.

**پېشبدنه** :- (پيِ + شيِ + دْ + نَه) [ پ ، حمص] (۱) پېښبدنه ، دوځاربدنه ، مخا مخ کېدنه ، (۲) حاضربدنه ، موجودبدنه

**پیشې** :-(پيِ + شيِ) [ پ ، اس ، مؤ] د پیشو د شړلو آواز ، پشي، بلي

**پېشې** :- (پيِ + شيِ) [ پ ، اس ، مؤ ، ج ] پېښې ، نقل.

**پیشي** :-(پيْ + شيْ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ] د ماشومانو په ژبه بول.

ـــــ **کول**:- (اص) د ماشومانو بول کول.

**پېښبدل** :- (پيِ + شيِ + دْ + لْ) [ پ ، مص لا] (۱) دو ځاربدل ، مخامخ کبدل ، ورانديِ کېدل ، پېښبدل (۲) حاضربدل ، موجودبدل.

**پېشبدُونکې** :- (پيِ + شيِ + دُوْ + نْ + کَې) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پېشبدونکي (مؤ : پېشبدونکې)] (۱) پېښبدونکې، دوځاربدونکې،موجودبدونکې

**پیشـیمه** :- (پـيْ + شـيْ + مَـه) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ] د پیشـو وار راوړل ، د پیشو ګرمبدل.

ـــــ **کبدل**:- (اف) اص.د پیشو وار راوړل.

**پېشین** :- (پيِ + شِيْ + نْ) [ پ ، اس ، معر ، مذ] په بلوچستان کنبې د یو ځاے نوم.

**پېشــن ګـوئي** :- (پـيِ + شِـيْ + نْ + ګـو + ئِـيْ) [ فـا ، اس ، مـؤ ] د څـهٔ پېشبدونکې واقعې په حقله د اول نه خبره کول.

**پېښ** :- (پيِ + شْ یا پيِ + خْ) [ پ ، ص ، مذ] و ـــ پېش

ما د وصل طلب که په هجران پېښ شوم

کار زمــــا لـــه بې صبرۍ تغویق با موند معزالله خان

**پـــېښ** :- (پـيِ + شْ + يِ پـيِ + خْ) [ پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پېښنُـونه] و ـــــــ پېش

**پېښـاؤ** :- (پيِ + شا + ؤ یـا پـيِ + خـا + ؤ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] (۱) تبوقه ، ملنډه ، وشته (۲) څهٔ واقعه ، پېښه.

**پېښاور** :- (پيِ + شا + وَ + رْیا پيِ + خا + وَ + رْ) [ پ ، اس ، معر ، مذ] پېښـور ، پېشـاور ، د پښـتنو د سـیمې یـو مشـهور ښـار او د خبـر پښتونخوا صدر مقام.

پـــه سبب د ظـــالمـــانو حـــاکمانو

کور او ګور او پېښور درې واړه یو دي رحمٰن بابا

**پېښاورے** :- (پيِ + شا + وْ + رَے یا پيِ + خا + وْ + رَے) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پېښاوریان (مؤ : پېښـاورۍ) ] د پېښـور اوسبدونکے ، پېښورے.

**پېښاوریتوب** :- (پيِ + شا + وْ + رِيْ + تو + بْ یا پيِ + خا + وْ + رِيْ تو + بْ) [ پ ، ص ، مذ] پېښاوري والے ، پېښوریتوب ، پېښـوري والے ، د پېښور والو په شان.

**پېښاوري والے** :- (پيِ + شا+وْ + رِيْ + وا + لَے یا پيِ + خا + وْ + رِيْ + وا+ لے) [ پ ، ص ، مذ] و- پېښاوریتوب

**پېښاوُو** :- (پيِ + شا + وُو یا پيِ + خا+ وُو) [ اف : پ (قـاموس) اس ، ص ، مذ ] پېښنُو و تبوقمار و پېښه ګر.

**پېښو** :- (پيِ + شُوْ یا پيِ + خُوْ) [ اف: پ (قاموس) اس ص ، مذ]و ـــ پېښاوُو.

**پېښـور**:-(پـيِ + شَ + وْ + رْیـا پـيِ + خَ + وْ +رْ) [ پ ، اس ، ص ، مـذ ، وا، (مؤ ، وا: پېښـوره ، ج : پېښـورې) ] کنبي بـاپ ، دُوړ ، هغـه کـاریګر چې د ورېٔ د تارونو نه بورۍ ، کمبلې او قالینونه جوړوي.

**پېښور** :- (پيِ + شَ + وَ + رْیا پيِ + خَ + وَ + رْ) [ پ ،اس ، معر ، مذ] و ـــ پېښاور

**پېښورے** :- (پيِ + شو + رے یا پيِ + خو + رَے) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پېښوریان (مؤ : پېښورۍ) ] و ـــــ پېښاورے

**پېښوریتوب** :- (پيِ + شو + رِيْ + تو + یا یا پيِ + خو + رِيْ + تو + بْ) [ پ ، ص ، مذ ج و - پېښاوري توب.

**پېښوري والے** :- (پيِ+ شو+ رِيْ + وا + لَے یا پيِ + خو+ رِيْ + وا + لَے) [ پ، ص مذ] و- پېښاوري توب.

**پېښول**:-(پيِ+شَ +وْ +لْ یا پيِ + خَ + وْ + لْ) [ پ ، مص ، مت ] (۱) پېشـول ، پېش کول ، وړاندې کول ، مخکښې کول (۲) حاضرول

**پر پېښول** :- (اف) اص.ورمخامخ کول.

**ورپېښول** :- (اص) څوک په څهٔ بدۍ یا بدکار وراړول.

**پېښولے** :- (پيِ + شو+ لې یا پيِ + خو + لې) [ اف : پ (قـاموس) اس] د پنډۍ اډوکے.

**پېښــونګ** :- (پــيِ + شَ + وْ + نْ + ګْ یــا پــيِ + خَ + نَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــــ پېښنو نه

**پېښــونه** :- (پــيِ + شَ + وْ + نَــه یــا پــيِ + خَ + وْ + نَــه) [ پ ،حمــص ] (۱) وړاندې کونه ، مخامخ کونه (۲) حاضرونه.

**پېښوُونکے** :- (پيِ + شَ = وُوْ +نْ + کَے یا پيِ + خَ + وُوْ + نْ + کَے) [ پ اس ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : پېښـوونکي (مـؤ : پېښـوونکې) ] (۱) وړانـدې کوونکے ، مخامخ کوونکے (۲) حاضروونکے.

**پېښه** :- (پيِ + شَه یا پيِ + خَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پېښې ] نقل، تبوقـه ، ملنډه.

په هر شان چې یار خوښېږي زهٔ هغه کړم

خپـــــــول د صـــاحبـــانو په پېښو شي رحمٰن بابا

**پېښــه** :- (پـيِ + شَـه یـا پـيِ + خَـه) [ پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : پېښــې ] (۱) واقعه ، حادثه.(۲) شروع

خداے زده څهٔ سودا په پېښه په بازار شي

د بـــــازار خـــبرې نـــهٔ شي پخپل کـــور رحمٰن بابا

عاشقي کړې راته پېښې هسې ګرانې

چې ئې ګرانې کړې د مرګ راته اٰسانې حمید

**ور پېښه** :- (اص) بده واقعه ، کشاله

**پېښه مار** :- (پېښه +ما + رْ) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : پېښه ماران ، (مؤ ، وا: پېښه ماره ، ج : پېښه مارې) ] تبوقمار ، نقلي، **هغه څوک** چې د خلقو پېښې کوي ، پېښئے

**پېښئے** :- (پيِ+ شَئے یا پيِ+ خَئے) [اف :پ (قاموس)اس، ص،مذوا] و- پېښه مار.

**پېښې** :- (پيِ + ښې یا پيِ + خې) [ پ ، اس ، ج ] تبوقې ، ملنډې ، نقلونه

ـــــ **کول**:- (اص) نقلونه کول ، تبوقې کول ، ملنډې کول.

**پېښبدل** :- (پيِ+ شيِ+ دْ+ لْ یا پيِ+ خيِ+ دْ +لْ) [پ،مص، لا] و - پېشبدل

**پـر پېښـبدل** :- (اص) (۱) پـه څـهٔ ځیـز اوښـتل ، څـهٔ ځیـز پـه لاس راتلـل (۲) خپل مقصد کنبې کامیاببدل ، (۳) چاته ورتلل.

**ورپېښــبدل** :- (اص) (۱) ور دوځـار کبـدل ، چاتـه څـهٔ واقعـه یـا حادثـه ورپېشبدل (۲) ورتلل ، حاضربدل.

**پېښبـدنګ** :- (پيِ + شيِ + دَ +نْ + ګ یا پيِ + خيِ + دَ + نْ + ګْ) [ اف: پ (قاموس) حمص ] و ـــ پېښبدنه.

**پښنبېدنه** :- (پـېِ + شـېِ + دْ + نَـه يـا پـېِ + خـېِ + دْ + نَـه) [پ ، حمـص] پښنبېدهٔ ، پښشبدهٔ ، پښنبېدنګ.

**پښنبېدُونکے** :- (پېِ + شېِ + دُوْ + نْ + کَے يا پېِ + خېِ + دُوْ + نْ + کَے) [پ، مف، مذ ، وا ، ج : پښنبېدونکي (مؤ : پښنبېدونکې)] وپښشبدونکے.

**پښنبېدهٔ** :- (پېِ + شېِ + دهٔ يا پېِ + خېِ + دهٔ) [پ ، حمص] و ــــ پښنبېدنه

خدا ے په هيڅا باندې پښنې مه کړه دېوان
د دېـــــوانـــــو پښنبېـــــدهٔ آفت د جــان مصري خان

**پېغام** :- (پېِ + غا + مْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېغامونه ، پېغامينه] خبر.

د صبا باده دا دومره مهر اوکړه
چې زما تر ياره يوسه پېغام غم معزالله خان

**پېغـامبر** :- (پېغـام + بَ + رْ) [فـا ، اس ، مـذ ، وا : پېغـامبران] پېغمبـر، پېغام وړُونکے ، پېغام رسوونکے ، قاصد ، نبي ، رسول

**پېغلتوب** :- (پېِ + غَ + لْ + تو + بْ) [پ ، اس ، مؤ] (۱) د ښځې ځواني ، د ښځې د ځوانۍ زمانه ، پېغلتون. (۲) بکره توب

ټپه: دا پېغلتوب مې د غم دود شو
ښائسته ځوانان راپسې مري خونخواره شومه!

**پېغلتون** :- (پېِ + غَ + لْ + تُوْ + نْ) [پ ، اس ، مؤ] و ــــ پېغلتوب

**پېغله** :- (پېِ + غْ + لَـه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پېغلې] ځوانه جينۍ ، ناوادهٔ شوې جينۍ.

ټپه: پسرلے ښهٔ باران ئې بد د
پېغله وابښهٔ کړي تور اوربل ئې لوندوينه!

**پېغمبر** :- (پېِ + غَ + مْ + بَ + رْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېغمبران] و- پېغامبر

پېغمبر مې محمد د عبــدالله د ے
مينه دار ئې په اصحابو چاريار يم خوشحال

**پېغمبر بوټے** :- (پېغمبر + بو + ټَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا] يو غرئيز بوټے.

**پېغمبر تـوب** :- (پېغمبر + تو + بْ) [پ ، اس ، مـذ] پېغمبري ، پېغمبر والے ، رسالت.

**پېغمبر ګل** :- (پېغمبر + ګُ + لْ) [پ ، اس ،مذ ، وا] يو ګل چې رنګ ئې زيړ وي او تور ټکي پرې باندې وي. پېغمبري ګل.

**پېغمبر والے** :- (پېغمبر + وا + لَے) پ ، اس مذ] و ــــ پېغمبر توب

**پېغمبــري** :- (پـېِ + غَ + مْ + بَ + رِيْ) [فـا ، اس ، م ؤ] پېغمبــر تـوب ، رسالت.

ــــ **سُنت** :- (ګن) اص. هغه ماشوم چې پيدائشي سُنت وي. او دوباره د سُنت کولو ضرورت ئې نهٔ وي.

**پېغمبري ګل** :- (پېِ + غ + مْ + بَ + رِيْ + ګُ + لْ) [پ ، اس ، مذ وا] و ــــ پېغمبر ګل.

ټپه: پېغمبري ګل به ترې جوړ شي
که په لنډۍ زنه دې کښېښودل خالونه!

**پېغـور** :- (پـېِ + غـو + رْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پېغورونـه] طعنـه ، ملامته ، بدې ردې.

زهٔ عار نهٔ لرم په عشق کښې له پېغوره
بې پــــروا يــــم دستئ په خبر له اوره رحمٰن بابا

ــــ **قبلول**:- (اص) ملامتيا منل ، طعنې او بدې ردې ته غاړه کښېښودل

ــــ **ګڼل**:- (اص) شرم ګڼل ، د شرم او پېغور کار شمارل ، بې عزتي ګڼل

ــــ **ورکول**:- (اص) طعنه ورکول ، د چا عيب ورته په بد رنګ ښرګندول.

**د پېغور کار** :- (اص) سپک کار ، پرېوتے کار ، د ملامتې کار ، ناکاره کار.

**پېغـورجن** :- (پېغـور + جَ + نْ) [پ ، اس ، ص ، مـذ (مؤ ، وا : پېغورجنه ، ج : پېغورجنې)] د پېغور وړ ، د غندنې جوګه.

**پېغورول** :- (پېِ + غو + رَ + وْ + لْ) [پ ، مص ، مت] پېغـور ورکول چاتـه خپل ښهٔ د پېغور په ډول وريادول.

**پېغورولے** :- (پېِ + غو + رْ + وْ + لَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پېغورولي (مؤ : پېغورولې)] پېغور ورکړے شوے.

**پېغورونګ** :- (پېِ + غـو + رَ + وْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قـاموس) حمص] و ــــ پېغورونه

**پېغورونــه** :- (پـېِ + غــو + رَ + وْ + نَـه) [پ ، حمـص] پېغــور ورکونــه ، پېغورونګ.

**پېغور وونکے** :- (پېِ + غو + رَ + وُو + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پېغوروُونکي (مؤ : پېغوروُونکې)] پېغور ورکوُونکے.

**پېغورېدل** :- (پېِ + غو + رېِ + دْ + لْ) [پ ، مص ، لا] پېغور ورکولے کېدل.

**د يزې پېغورېدل** :- (اف) اص. د يو کار په وجه تل عمري د پېغور ورکېدل

**پېغولے** :- (پېِ + غو + لَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ــــ پوغله

**پېک** :- (پَېِ + کْ) [پ (ظفر) اس ، مذ] استاځے ، قاصد ،

**پېک** :- (پَېِ + کْ) [اف : پ (قـاموس) اس] (۱) چڼاسـه ، (۲) مـچ شـړونے ، مچ شړ ، مچ بنګ ، چورۍ.

**پيک** :- (پِيْ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) هغـه لـرګے چېـد اوبښ کنته پرې ترلے شي. (۲) د تېلو ګرنۍ ، پيپ.

**پېکـال** :- (پـېِ + کـا + لْ) [پ ، (ب، خ) اس ، مـذ ، وا ، ج : پېکانونـه] د شاړو ، کانو يا بُوګرونه جوړ هغه پوړ چې په ځېز يا ساله غوړولے شي

**پېکـان** :- (پـېِ + کـا + نْ) [فـا : اس ، مـذ ، وا ، ج : پېکانُونـه] د غشـي، نيزې يا بلمې څوکه.

تـــــل د تــــــن هـــــــډونــــه راد کاږم په نوکونو
غم ئې د ناوک خورم چرې مات نهٔ شي پېکان خوشحال خان

**پېکاني خط** :- (پېِ + کا + نې + خَ + طْ) [پ تر ، اس ، مـذ] يو زوړ رسم الخط چې د حرفونو شکل ئې د غشي د سر په شان د ے.

**پېکائے** :- (پېِ + کا +ئے) [پ (وز) اس ، مذ] پيکائے ، پيکے ، د تنـدي دپاسه پرېښنلې وبښتهٔ چې نور سر ئې خرئيلے وي.

ټپه: پيکائے مې چګ کړهٔ خال مې څپکړه
د جنت ګل د ے پرې تازه به شي مئينه!

**پيکائے** :- (پِي + کائے) [پ (بنو) اس ، مذ] و ــــ پېکائے.

**پيکټ** :- (پِي + کْ + ټْ) [انګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پيکټونه] (۱) بنډل ، (۲) ډبے ، دبلے.

**پيکټ** :- (پِي + کْ + ټْ) [انګ ، اس ، مذ ، وا] مُعاهده ، لاس ليک

**پيکرکے** :- (پِيْ + کْ + رْ + کَے) [پ (خل) اس ، مذ] پيکرے.

**پيکـرے** :- (پِـيْ + کْ + رَے) [پ (خـل) اس ، مـذ] ټيکـرے ،کـودرے ، ټيکرکے ، پيکرکے

**پېکړه** :- (پېِ + کْ + ړَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پېکړې] (۱) ځولنـه هغـه کـړۍ چـې د ښـاروي پښـو تـه پرتـه وي او پـړے پکښـې اچـولے شـي (۲) ګرانه کشاله.

غمخـوارهٔ غمخـورګې د کـوم کـوم غـم کـا
چــې پســې و پــه حميــد د غــم پيکــړه

ــــ **جوړېدل**:- (اص) څهٔ قصه ورانېدل او ګرانېدل ، د څهٔ لانجې نـه ورانـه ماشوره جوړېدل.

**پېکـل** :- (پَـېْ + کَ + لْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : پېکلُونـه]

(۱) هغه پړے یا رسۍ چې وینځلې شوې جامې پرې غوړولے شي (۲) یوه خار داره آله چې غوبل پرې کولے شي.
**پیکنکل** :- (پَي + کَ + نْ + کَ + لْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] ونـــړ ونړ کونه، ونړۍ کونه.
ـــــ **کول**:- (اف) اص۔ونړ ونړ کول.
**پیکنګ** :- (پيْ + ک + نْ + ګْ) [اس، معرفه، مذ] د عـوامي جمهوریـه چین صدر مقام.
**پیکو** :- (پَي + کو) [پ، اس، مذ] (۱) د شولو مشین، پائیکو، (۲) د مېنچو یا سویاں مشین.
**پیکوړه** :- (پيْ + کو + رَه) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] و ـــ پکوړه
**پې کول** :- (پَي + کَ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] (۱) ونې پرې کول (۲) د اوبو ژور والے معلومول.
**پیکوے** :- (پي + کَ + وْے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: پیکوي] پیوے، چونکه، د تارونو نه جوړ هغه څیز چې زنانه د سر ویښتهٔ پرې تړي برچوے۔پیوکے، پیپکے.
**پیکه** :- (پِيْ + کَه) [پ، ص] (۱) بې خونده، بې مزې (۲) تت رنګه (۳) شرمنده،ملامت، کچه (۴) سپور مخے، بې نمکه، بدرنګ
د هاتي د پاسه سور ورته پیکه وي
چې میـــو پیـــالې اخلي سرهنګان خوشحال
ـــــ **پیکه کېدل**:- (اص) (۱) شرمېدل (۲) په شرم شرم څهٔ خبره کول
ـــــ **خبره** :- (اص) بې خونده او بې مزې خبره.
ـــــ **کول**:- (اص) شرمنده کول، ملامتول، کچه کول.
ـــــ **کېدل**:- (اص) (۱) شرمنده کېدل، ملامتېدل، کچه کېدل (۲) بې مزې کېدل، بې خونده کېدل.
**کچه پیکه** :- (اص) شرمېدلے
**پیکه توب** :- (پیکه + تو + بْ) [پ، ص، مذ] (۱) کچه والے، شرمندګي، پیکه والے (۲) د رنګ تتوالے (۳) بې خوندي.
**پیکه والے** :- (پیکه + وا + لَے) [پ، ص، مذ] و ـــ پیکه توب
**پېکے** :- (پي + کَے) [پ، اس، مذ، وا] د تندي وېښتهٔ چې د پېغلتوب د علامې په طور ساتلے شي.
ـــــ **پرېکول**:- (اف) اص۔د پېغلې جینۍ سره د خپل نکاح اوازه خورول.
**پېګ** :- (پَي + ګْ) [انګ، اس، مذ، وا، ج: پېګونه، پېګینه] د شرابو څښلو ورکوټے ګلاس.
**پېګني** :- (پي + ګَ + نَ + ئِيْ) [پ (ظفر) اس، مؤ] د ګډو ورۍ.
**پېګو** :- (پيْ + ګُوْ) [اس، معرفه، مذ] د برما یو ښار.
**پېل** :- (پي + لْ) [پ، اس، مذ] شروع، ابتداء، اغاز، لاس لګونه
خسته زړهٔ بـــه مبتــــلا پـــه بلا نهٔ ؤ
که ئې سترګو د دیدن نهٔ راوړے پېل مصري خان
ـــــ **کول**:- (اص) شروع کول، لاس لګول.
ـــــ **کېدل**:- (اص) شروع کېدل، لاس لګېدل.
ـــــ **ورته اېښودل**:- (اص) د څهٔ کار شروع ورته کول، په اول سر کښې په څهٔ کار برید ورته کول.
**پیل** :- (پَ + يَ + لْ) [پ، مص مت] و ـــ پېرل.
که هر څو ئې محکمې کا ززرو شلېږي
چې پئې څـــوک د زبـــان په تار لباس مصري خان
**ستنه پیل** :- (اص) په ستنه ګنډون کول،
**پیل** :- (پيْ + لْ) [پ، فا : فیل، اس، مذ، وا، ج: پیلان (مؤ، وا: پیله، ج : پیلانې) ] هاتي، اتي.
هم پـــه دا عقل بې عقله معلومېږي
چې په زور د مېږي لار نیسي د پیل حمید
**د پیل په غوږ کښې بیدېدل** :- (اف) مح.(۱) د اتي په غوږ کښې اودهٔ کېدل، (۲) زیات غافلېدل، د څهٔ نه ځان نهٔ خبرول.
**پیلات** :- (پَي + لا + تْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] فساد، شر، فتنه.
ـــــ **جوړول**:- (اف) اص، فساد جوړول، فتنه پورته کول، شر جوړول، پیلات کول.
ـــــ **کول**:- (اف) اص.و ـــ پیلات جوړول.
**پیلاتي** :- (پَي + لا + تِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ص، مذ] فسادي، فتنه ګر.
**پېلار** :- (پي + لا + رْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: پېلارونه] پرده، اړ، پېلیار.
ـــــ **اچول**:- (اف) اص۔پرده راغورزول، پرده کول.
**پیلامه** :- (پي + لا + مَه) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: پیلامې] (۱) علامه، علامت، نشاني، نخښه (۲) بُنیاد، اساس، رده، (۳) خوئي، خصلت.
**پیلامې ښکاره کېدل** :- (اف) اص۔نخښې ښکاره کېدل، علامې ظاهرېدل.
**پیلائے** :- (پي + لائے) [پ (بنو) اس، مذ، وا، ج: پیلي] څپولے، پولئے.
**پیلبو** :- (پي + لْ + بو) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: پیلبووې] برېښنا، آسمان چڼ کېدنه، پیلوا.
**پیلپیلکه** :- (پيْ + لْ + پيْ + لَ + کَه) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج : پیلپیلکې] بي بي اوښه، اخکۍ، یو قسم چینجے.
**پیل تړ** :- (پيْ + لْ + تَ + ړْ) [اف: پ، اس، مذ] د شطرنج د لوبې یو چال چې د هاتي شاته دوه پیاده یو ځاے شي.
**پیلځکے** :- (پيْ + لْ + ځْس + کے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: پیلځکي] وراندي یا د بارسر باري.
**پیلستے** :- (پي + لْ + سْ + تے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: پیلستي (مؤ : پیلستې)] زلموټے، نوے بالغ شوے.
ـــــ **کېدل**:- (اف) اص۔بالغېدل، زلمے کېدل، کُوزه اخستل.
**پیلستیا** :- (پي + لْ + س + تْ + یا) [اف پ (قاموس) اس، مؤ] ځواني، زلمیتوب، بلوغت.
**پیلغوړه** :- (پيْ + لْ + غو + ژَه یا ګه) [اف : پ ( قاموس) اس، مؤ] پلنه ډوډۍ، د هاتي د غوږ په شان پلن پاستے.
**پیلنه** :- (پي + لْ + نَه) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] بېلنه، جدائي، بېلتون.
ـــــ **کول**:- (اف) اص۔جدا کول، بېلول.
**پیلو** :- (پيْ + لو) [ه، اس، مذ] یو مشهور راګ.
**پیلوا** :- (پي + لْ + وا) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] و ـــ پیلبو.
**پیلوان** :- (پيْ + لْ + وا + نْ) [اف : پ، فا، فیلبان، اس، مذ، وا، ج: پیلوانان] د هاتي مهاوت، هغه څوک چې د هاتي په اورمېږ سور وائي او بیائي ئې.
**پیلوځے** :- (پي + لْ + وَ + دْزَے) [اف : پ (قاموس) اس،مذ، وا، ج: پېلوځي] هغه ماده چې اور پرې بلولے شي.
لېونے یمـــه د مینې
سوځم زهٔ لکه پېلوځے بختیار کاکي رحمه الله
**پیلـــوړ** :- (پــي + لــو + ړْ) [اف : پ (قـاموس) اس، مـذ] (۱)کوښـــښ

(۲) غمخوري ، همدردي.

**پیلوړه** :- (پې + لو + ړَه) [اف : پ (قاموس) اس ،مؤ ، وا ، ج : پیلوړې] هغه پړے چې د کېږدۍ غوږې پرې تړلے شي.

**پیلوښه** :- (پې + لْ + وَ + شَه یا وَ + خَه) [اف : پ (قاموس) اس ،مؤ، وا، ج : پیلوښې] د خر د تړلو رسۍ یا پېچوړه چې پیلونه هم ورته وائي.

**پیلونګ**:-(پَې + لْ + وُ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـ پیلونه

**پیلونه** :- (پَې + لْ + وُ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] پېل ، شروع، توتیه ، پیلونګ.

**پیلونه** :- (پې + لْ + وُ + نَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا، ج: پیلونې] و ـــــ پیلوښه.

**پیلې** :- (پَې + لې) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، ج] پایلې ، پنزیب

**پیلیار** :- (پې + لْ + یا + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـ پیلار

**پیمال** :- (پې + ما + لْ) [پ ، فا : پائمال ، اس ، مذ] لتاړ ، پښو لاندې کړے

چې ئې ستا له کښلې مخ سره سیالي کړه

بهـــار ځـــکـــه د خـــزان باد کړۀ پیمال مصري خان

**پیمال**:-(پَې + ما + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] کسب ، پیشه ، هُنر

**پیمالوال** :- (پې + ما +ل + وا + لْ) [اف :پ (قاموس) فا ع ، مذ] کسب ګر ، هُنرمند ، پیشه ور.

**پیمان** :- (پې + ما+ نْ) [فا ، اس ، مذ ، وا، ج : پیمانُونه] وعده ، قول ، اقرار ، لوظ

په دا عهد کښې په عهد په پیمان

یورښتونې مونږه ولید یحیٰی خان مصري خان

**پیمانه** :- (پې + ما + نَه) [فا ، اس ، مؤ ، وا، ج : پیمانې] (۱) جام، پیاله (۲) د ناپ آله (۳) مسطر ، د کرښو راکښلو فُټه.

راتـه نیسـې جانانـه د شرابو پیمانـه

د شرابو پیمانـه راتـه نیسـې جانانـه

زۀ چې شونډې ستا په شونډو باندې کېږدمه

وایـــم نـــوشې مې د شـــونـډو پیمانې کړې خوشحال خان

**پیمائش** :- (پې + ما + ي + شْ) [فا ، اس ، مذ ،وا ، ج : پیمائشونه] ناپ، کچ.

**پیمائشي** :- (پَې + مـا + يې + شِيْ) [پ ، اس ، ص ، مؤ] (۱) د پیمائش جوګه ، (۲) کچ کوُونکے.

**پیمختـوب** :- (پـې + مَ + خْ + تـو + بْ) [پ ، ص ، مـذ] کښلا ،ښـکلا ، کښلوا لے و ښائست

لائې زۀ له پیختوبه چُور چُور ناست یم

بیا ئې کـه راباندې خط لښکر د پاسه حمید

**پے مخے** :- (پَے + مْ + خَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ،وا ، ج : پې مخي (مؤ: پې مخې)] کښلې ، ښائسته.

دا پې مخے چې ئې مخ د نمر په څېر دے

تور وښتۀ به ئې په مخ باندې ځنګل شي رحمٰن بابا

**پیمدل** :- (پې + مْ + دْ + لْ) [پ ، مص مت] پیمانه کول ، پیمل ، پیودل ، پیمیل.

**پیمدلے** :- (پې + مْ + دْ + لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا] پیمانه کړے ، پیملے ، پیودلے.

**پیمدنه** :- (پې + مْ + دْ + نه) [پ ، حمص] پیمانه کونه ، پیودنه.

**پیمل** :- (پې + مْ + لْ) [پ ، مص مت] و ـــــ پیمدل

ستـــا د عـــمر راشه پیمې غافل مه شه

څۀ شو وخت که د دم اړوي من درو ورو مصري خان

**پې منټ** :- (پې + مِ +نْ + ټْ) [انګ ، اس ،مذ ، وا، ج : پې منټُونه] ادائیګي.

**پیمے** :- (پې + مے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] اوړے ، پیمانه ، هغه لوښے چې غله پرې پیمدلے شي.

**پیمیل** :- (پې + مْ + يْ + لْ) [پ ، مص مت] و ـــــ پیمدل.

**پین** :- (پِيْ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د مېدې پوړۍ.

نېک و بد ئې په قبضه کښې د قضا دي

بېهــــوده خـــبرې مــه پیـمه وردرومه خوشحال

**پینجڼ** :- (پِيْ + نْ + جَ + ڼْ) [پ (ګن) اس ، م ، وا ، ج : پینجڼان] ډنډت ، ډانډج ، ډینډت ، ډانډپ ، ډغ

**پینځټکے** :- (پِيْ + نْ + دْز + ټْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ،مذ] ټیکه ، ټیک ، هغه کالے چې پېغلې جینکۍ ئې په تندي راځوړند کوي.

**پینځلسې** :- (پِيْ + نْ + دْز + لَ + سَې) [پ (وز) اس ، مذ] (۱) د میاشتې پنځلسمه ورځ (۲) شوقدر ، د شعبان پنځلسم ، شب برات

**پیندل** :- (پې + نْ + دْ + لْ) [پ (ب، خ) مص مت] پیمدل.

**پیندنـه** :- (پـې + نْ + دْ + نـه) [پ (ب، خ) اس ، فـا ع ، مـذ ، وا، ج : پیندُونکي (مؤ : پیندُونکې)] پیمدُونکے.

**پینډه** :- (پې + نْ + ډَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا، ج : پینډې] (۱) جمع ، یو ځائے ګڼه (۲) وړه مږۍ ، تربل ، سوبت ، هغه ډوډۍ چې په لوے ښانک کښې په ښوروا کښې ماته کړے شي او په یوه غُنډه دائره کښې خوړونکي پرې راټول شي.

ـــــ **جوړول**:- (اص) سوبت جوړول ، وړه مږۍ تیارول.

ـــــ **کول**:- (اص) وړه مږۍ تیارول ، سوبت جوړول.

ـــــ **کېدل**:- (اص) سوبت کېدل ، وړه مږۍ تیارېدل.

**پینډې تېرول** :- (ب ، خ) اص .ډېرو خلقو ته ډوډۍ ورکول ، سخي توب کول.

**پینډۍ** :- (پې + نْ + ډۍ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هغه ځلور ګوټیز او هوار کاڼے چې د مېلې د ستنې لاندې کښېښودلے شي.

**پینغ** :- (پې + نْ + غْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د خېټې سخت درد ، مروړ ، قولنج.

ـــــ **کېدل**:- (اف) اص .خېټه کښې مروړ پېدا کېدل ، سخت درد پېدا کېدل ، قولنج کېدل.

**پینک** :- (پې + نَ + کْ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ] د انګورو د غُنچې جُومپک ، پُینګ.

**پینکه دانه** :- (پِيْ + نْ + کَه + دا + نَه) [پ (خل) اس ، مؤ] و ـ پیسکوړګ.

**پُینګ** :- (پُ + يَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـ پینک

**پینګڼ** :- (پِيْ + نْ + ګَ + ڼْ) [اف : پ (قاموس) اس،مذ (مؤ ، وا: پینګنه ، ج : پینګنې)] د لنډې او کمې حوصلې خاوند .

**پینګو** :- (پِيْ + نْ + ګو) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] زانګو ، زانګویه ، ټال ، پینګه.

**پینګه**:-(پې +نْ + ګَه) [پ (ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج : پینګې] و ـ پینګو

**پینل** :- (پِيْ + نَ + لْ) [پ ، مص مت] مېده کړے څیز ، خولې ته اچول ، پکل

**پینلې** :- (پې + نَ + لْ + يې) [د لوبې په دوران کښې د مقرر قانون خلاف ورزي.

**پینلے** :- (پِيْ + نْ + لَے) [پ ، مف ، مذ (مؤ : پینلې)] مېده کړے څیز خولې ته اچولے ، پکلے.

**پیننه** :- (پِيْ + نْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] مېده کړے څیز ، خولې ته اچونه ، پکنه.

**پینوُنکے** :- (پِيْ + نُو + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا، ج : پینوُنکي (مؤ : پینوُنکې)] مېده کړے څیز خولې ته اچونکے ، پکونکے.

**پینه** :- (پِيْ + نَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پینې] (۱) د جامې

پیوند یا ټوټه ، (۲) د دیوال ډانګه یا پُشتي.

ـــــ **کول**:- (اف) اص. پیوند کول ، ټوټه لګول.

ـــــ **ور وړل**:- (اف) اص. پیوند لګول.

**پوري پینه کېدل** :- (اف) اص. په چا پوري ځان تړل یا پیوند کول.

**پینه** :- (پيْ+نَه) [اس ، مؤ ، وا، ج :پینې] پینکے ، د لرګي نه جوړ لوے ښانک.

**په پینه کښېنول** :- (اص) ماشوم د سُنت کولو دپاره د لرګي په ښانک کښېنول ، هلک سُنتول.

**پینے** :- (پيْ+نَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] هغه بوټے چې جارو یا ربېځ ترې جوړولے شي.

**پیني** :- (پيْ+نيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] دنیا.

**پینبغ** :- (پيْ+نې+غْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] پینغ ، هغه باد چې د داړو ولو په مېنځ کښې پېدا کېږي او قبضیت ترې جوړېږي.

**پېنه** :- (پې+نَه) [پ (سو) اس ، مؤ] وار ، پېره ، ځل

**پېنه** :- (پې+نَه) [پ (سو) اس ، مؤ] ملګرتیا

**پېنه** :- (پې+نَه) [پ (سو) اس ، ص] پېرړه ، مضبوط ، غټ.

**پېودل** :- (پې+وْ+دْ+لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] (۱) پېیـل پیـل ، پېرل (۲) په ترتیب کول.

**پېودلے** :- (پې+وْ+دْ+لَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ،وا ، ج : پېودلي (مؤ ، و: پېودلې) ] (۱) پیلې ، پېیلې ، پېرلې (۲) په ترتیب شوے.

**پېودنګ** :- (پې+وْ+دْ+نْ+ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] وـــــ پېودنه.

**پېودنـه** :- (پـې+وْ+دْ+نـَه) [اف : پ (قـاموس) حمـص] (۱) پېودنـګ پېودون ، پینه ، پېرنه (۲) په ترتیب کونه.

**پېوُدون** :- (پې+وْ+دُوْ+نْ) [اف : پ (قاموس) حمص] وــ پېودنه

**پېوُدونکے** :- (پې+وْ+دُوْ+نْ+کَے) [اف : پ (قـاموس) اس فـا ع مـذ ، وا ، ج : پېـود ونکـي (مـؤ : پېـودونکې) ] (۱) پېـودونې ، پیـونکے ، پېرونکے (۲) په ترتیب کوُونکے.

**پېودونے** :-(پې+وْ+دُوْ+نَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : پېودُوني (مؤ : پېودُونې) ] وـــــ پېودونکے.

**پیورکے** :- (پـې+وْ+رْ+کَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] پئـی ، یـو داسې بوټے چې پئـی پکښې وي.

**پیوره** :- (پې+وَ+رَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : پیورې] پئـی ورکوونکے چې پئـی پکښې زیات وي.

ـــــ **کېدل**:- (اف) اص. پئـی پکښې زیاتېدل.

**پېوکے** :- (پې+وَ+کَے) [اف :پ (قاموس) اس،مذ ، وا،ج : پېوکي او- پېکوے

**پېوست** :- (پې+وَ+سْ+تْ [فا ، ص ، مذ ] سره ، یو ځاے ، سره ، ښـخ ، لګېدلے ، جُخت.

**پېوست** :- (پې+وَ+سْ+تْ) [اف : پ (قـاموس) ص ، مـذ] د فارسـی د پېوست ضد.

ـــــ **پېدا کول**:- (اف) اص. جدا کېدل ، دوه څیزونه سره لـرې کېـدل او پـه مېنځ کښې فاصله پېدا کېدل.

ـــــ **لرل**:- (اف) اص ، فاصله لرل ، لرې والے کول.

**پېوستون** :- (پې+وَ+سْ+تُوْ+نْ) [پ ، اس ، مذ] د غـر پـه مېـنځ کښـې چاؤدون

چې مـدام د چاؤد کمر په سر ولاړ ئې
خود به پرېوځې یوه ورځ له پېو ستونه عبدالحمید

**پېوستون** :- (پـې+وَ+سْ+تُـوْ+نْ) [پ ،اس ، مـذ] یـو ځـاے کېـدل ، نژدې کېدل ، جختېدل.

یـــار لـــه ما د اشنایی پیوند پرې که
زۀ لا بیا د زړۀ په خولۀ په پېوستون یم معزالله خان

**پېوسته** :- (پې+وَ+سْ+تَه) [فا ، ص] نژدې ، جُخت

تا وېل وماته څوک ډېر غم غواړي لـه مانه
ستا په غم خوشحال یم څور ادروې پېوسته خوشحال خان

**پیول** :- (پْ+يْ+وْ+لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] (۱) ونې پرې کـول (۲) د اوبو ژوروالے معلومول.

**پیول** :- (پْ+يَ+وْ+لْ) [پ ، مص مت] پوهـ کول ، پوهول.

**پیول** :- (پې +وْ+لْ) [پ (وز) مص مت] پوول ، څرول.

**پیولے** :- (پْ+يَ+وَ+لَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : پیولي (مؤ : پیولې] پوهه کړے ، په خبره رسولے.

**پیونـد**:-(پَـې+وَ+نْ+دْ) [فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : پیوندونـه ] (۱) جـوړ پېوستون (۲) تعلق.

ددۀ زړۀ پـــه هـــره چـــار کښـــې
د همـــــت ســـــره پیونـــــد
په هغۀ زما سلام خورند دې اوسي
چې د چـــا سره نۀ مهر نۀ پیوند کا خوشحال

ـــــ **پریکول**:- (اص) تعلق ختمول ، راشه درشه نۀ کول.

ـــــ **په پیوند**:- (اص) بند په بند ، جوړ په جوړ.

ـــــ **کول**:- (اص) یو ځاے کول ،

ـــــ **لګول**:- (اص) (۱) جوړ لګول ، پیوند کول (۲) په بُوټي کښې سترګه لګول.

**پیوند** :- (پې+وْ+نْ+دْ) [پ (مر) اس ، مذ ، وا] درمه ، د یوې هغه لرګے چې سُوري پکښې وي. او ژغ سره په پرې ترلے کېږي.

**پیوند ګلي** :- (پې+وْ+نْ+دْ+ګَ+لِيْ) [پ ، اس ،مؤ] یو ځاے کېـدل ، وصل کېدۀ.

**پیوندي** :- (پَې+وْ+نْ+دِيْ) [پ ، ص ] (۱) پیوند لـرونکے ، چې پیوند پکښې لګېدلے وي. (۲) د بېرې هغه وُنه چې د پیوند لګولو پـه وجـه د عام بېرې په نسبت غټه او خوږه مېوه نیسي. سوابېره ، بډه بېره.

**پیونـګ** :- (پْ+يْ+وَ+نْ+ګْ) [اف : پ (قـاموس) حمـص] (۱) د اوبـو ژوروالے معلومونه (۲) ونې پرې کونه.

**پیونه** :- (پْ+يْ+وْ+نَه) [پ ، حمص] پوهـ کونه.

**پیوُونکے** :- (پْ+يْ+وُوْ+نْ+کَے) [پ ، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : پیـوُونکي (مؤ : پیوونکې) ] پوهـ کوونکے ، په خبره رسوونکے.

**پیوُونکے** :- (پْ+يْ+وُوْ+نْ+کے) [اف : پ (قاموس) فـا ع ، مـذ ، وا ، ج : پیوُونکي (مؤ : پیوُونکې) ] (۱) ونې پرې کوونکے. (۲) د اوبـو ژور والے معلوموونکے.

**پېوے** :- (پې+وَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : پېوي] وـــــ پېکوے

**پیه** :- (پَ+یه) [پ ، ه : پهیه ، اس مؤ ، وا ، ج : پیې] ارینائے، ټبر

**پیه** :- (پَ+یه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : پیې] (۱) پهـه هغـه لته چې خوږ سترګه پرې ترلے شي. (۲) اُوبزے.

**پیهچ** :- (پِې+هـْ+چْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو قسم وُنه.

**پیېدل** :- (پْ+یې+دْ+لْ) [پ ، مص لا] پوهېدل ، پوهه کېدل ، په خبره رسېدل

**پیېدل** :- (پَ+یې+دْ+لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] (۱) وُنه پرې کېدل (۲) د اوبو ژوروالے معلومېدل.

**پېيدلے** :- (پْ +يې +دْ + لَے) [پ، مف مذ ، وا ، ج : پېيدلي (مؤ: پېيدلې)] پوهېدلے ، په خبره رسېدلے.

**پېيـــدنګ** :- (پَ + يـــې + دْ + نْ + ګْ) [اف : پ (قامـــوس) حمـــص] (۱) وُنه پرې کېدنه (۲) د اوبو ژوروالے معلومېدنه.

**پېيدُونکے** :- (پَ + يې + دُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ وا ، ج : پېيدونکي (مؤ : پېيدونکې)] (۱) پرې کېدونکې ونه ، (۲) ژوروالے معلومېدُونکے.

**پېيـــدونکے** :- (پْ + يـــې + دُوْ + نْ + کَـــے) [پ ، مـــف ، مـــذ ، وا ، ج : پېيدُونکي (مؤ : پېيدونکې)] پوهېدونکے ، په خبره رسېدونکے.

**پېير** :- (پِ + يې + رْ) [اف : پ (قاموس) ص] و ـــــ پهير

**پېيکې** :- (پې + يَ + کې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: پېيکي] و ـــــ پېکوې

**پېيل** :- (پې + يَ + ل) [پ ، مص ، مت] پېرل ، پېودل.

قيمتي په قيمتي سره جوړېږي
پـــه يـــوه مزي پېيل شي درو لال خوشحال خان

**پېيلے** :- (پې + يَ+ لَے) [مؤ : پېيلې] پېرلے ، پېودلے.

ما چې شونډې غاښ د هغه يار نۀ وي ستائيلي
راشـــه کـــه ئې ګـــورې لعل او دُر مې دي پېيلي خوشحال

**پېنګ** :-(پې + يَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ پېينه

**پېينه** :- (پې + يْ + نَه) [پ، حمص] پېينګ ، پېرنه ، برابرونه ، پـه ترتيب کونه.

**پُېيونکے** :- (پـې + يُـوْ +نْ + کـے) [پ فـاع ، مـذ ، وا ، ج : پېيُـونکي ، مـؤ: پېيونکې] پېرُونکے ، برابرونکے ، په ترتيب کوونکے.

**پېيوے** :- (پې + يْ + وْے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، ج : پېيوي] و ـــــ پېوکے

◈◈◈

# ت

**ت** :- (تې) [حرف ، مؤ ، وا ، ج : تې ګانې] د پښتو ، عربي ، فارسۍ او د هغو نورو ټولو ژبو د حرفو تهجي يو ټکے چې په پښتو کښې ئې څلورم نمبر دے د ابجد په حساب د "ت" طاقت په څلورو سوه شمېر دے.

**تا** :- (تا) [ضمير مخاطب] (۱) تو ، مخامخ کښې ته دخبرو په وخت وئيلے شي.(۲) د کاغذ يا کپړې يوه تخت.لکه: يوه تا ، دوه تا .(۳) د لړ وخت دپاره مخ ښکاره کول (۴) ورکوټي ماشومان د لوبو په وخت سر راڅرګند کړي او د ځان ښودلو دپاره "تا" اواز وکړي.

تـا وې چـې غـم مه کړه نور زهٔ ستا يم ته زما
زهٔ خو دې ژوندے کړم که دروغ کړې که رښتيا    خوشحال خان

**ــــ کول**:- (۱) د لړ وخت دپاره راتلل ، ايله قدرې راڅرګندېدل (۲) د ماشوم په لوبو کښې ځان څرګندول.

**تاب** :- (تا + بْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : تابُونه] (۱) تاؤ ، ګرمي . (۲) غصه ، قهر ، کاوړ (۳) زور ، طاقت ، قوت ، وس ، توان (۴) پړق پړوق ، ځلق (۵) ول ، پېچ و خم.(۲) تکور ، تب.

که دې زلفې په مخ پېچ و خم شوې ښائي
وېـښــتهٔ څـهٔ طاقت لري د اور له تابه    رحمٰن بابا

لکـه ستا د زلفو تاب شته
په سنبلو کښې هم تاب شته    خوشحال

**ــــ راوړل**:- (اص) زغمل ، برداشت کول ، طاقت لرل.

**ــــ لرل**:- (اص) توان لرل ، طاقت لرل ، زور لرل ، قوت لرل.

**ــــ و تب**:- (اص) (۱) ځلق ، تاب و تپ ، پړقا (۲) ګرمي

چې حبيب مې سپي رقيب و ته قريب شهٔ
خوار غريب روح مې په تاب په تب راغے    بېدل

**ــــ و تپ**:- (اص) و ــــ تاب و تب.

د وصال په چشمه مرمه وچې شونډې
د هـجـران د اندېښنې له تاب و تابه    حميد

**ــــ ور کول**:- (اص) ټکور ورکول ، ټکورول ، تبل

**ــــ ور کېدل**:- (اص) ټکور ورکېدل ، ټکورېدل ، تب ور کېدل

**تابان** :- (تا + با + نْ) [فا ، ص ، مذ ، وا] رُوڼ ، روښان ، ځلنده.

په ښهٔ مخ به خو تابان ئې
ښهٔ تر مياشتې تر اسمان ئې    خوشحال

**تابانه** :- (تا + با + نَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا] روڼ مخې ، د ښځو نوم.

**تاب دان** :- (تاب + دا + نْ) [فا ، اس ، مذ ، ج : تابدانونه] روشندان ، روزن ، منګ ، د کوټې په چت کښې هغه سُورے چې د هوا او رڼا دپاره پرېښے شوے وي.

**تابژن** :- (تاب + ژَ + نْ يا جَ + نْ) [پ ، ص ، مذ] تابجن ، تاؤژن ، تاؤجن ، برېښېدونکے ، ځلېدونکے ، پړقېدونکے ، چنګېدونکے

**تابستان** :- (تا + ب + سْ + تا + نْ) [فا ، اس ، مذ ، وا] اوړے ، د ګرمۍ موسم ، د کال په څلورو موسمونو کښې يو ، چې جېټ ، اړ ، پشکال (ساوڼ) او بادرو په مياشتو کښې وي.

**تابع** :- (تـا + بَ + عْ) [ع ، اس ، مـذ] (۱) تابعدار ، حکم منونکے ، فرمانبردار (۲) نوکر ، غلام ، مرئيے

**تابعدار** :- (تابع + دا + رْ) [فا ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : تابعداران (مؤ ، وا : تابعداره ، ج : تابعدارې)] فرمانبردار ، حکم منونکے

**تابعداري** :- (تابع + دا + رِيْ) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تابعدارۍ] فرمانبرداري ، حکم منڼه.

**ــــ کول**:- (اص) حکم منل ، ديانتداري کول.

**ــــ کېدل**:- (اص) حکم منلے کېدل ، فرمانبرداري کېدل.

**تابعي** :- (تا + ب + عِيْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : تابعين] هغه سړے چې هغهٔ د رسول کريم صلى الله وسلم اصحاب کتلي وي.

**تابنده** :- (تا + ب + نْ + ده) [فا ، ص] روښانه ، چنګېدونکے ، ځلقېدونکے ، پنګېدونکے ، پړقېدونکے.

آب و تاب ئې عالمګير لکه آفتاب شي
هـر حسـين چې تابنده کاندې اخلاص    حميد

**تابوت** :- (تا + بُو + تْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : تابوتونه] (۱) هغه صندوق چې مړے پکښې کښېښودلے شي.(۲) مړے يا لاش ، جنازه.

**تابه** :- (تا + بَه) [پ (ظفر) اس ، مؤ ، وا ، ج : تابې] تبخے ، توے ، تبغنه ، تبۍ.

**تابيا** :- (تا + بْ + يا) [پ ، اس ، مؤ] (۱) تابيه ، فکر ، بندوبست ، انتظام (۲) تياري ، د څهٔ کار دپاره ځان جوړول.

هر چې ولې ئې تابيا ونکړه د لوے لارې    خواجه محمد بنګش

**ــــ کول**:- (اص) (۱) تابيه کول ، فکر کول ، بندوبست کول (۲) تياري کول ، څهٔ کار کولو شته ځان برابرول (۳) سو.په انتقامي شکل کښې په چا سختي کول

**ــــ کېدل**:- (اص) (۱) تابيه کېدل ، فکر کېدل ، بندوبست کېدل ، (۲) تياري کېدل

**تابين** :- (تا + بِيْ + نْ) [پ ، اس ، مذ] (۱) مرئيے ، غلام ، ابل ، د بل په واک اختيار کښې ، (۲) ترتيب ، بندوبست (۳) تابعداري.

لاس په نامهٔ خوښ يم د خوبانو د تابين ته
کـانـدې تـواضع سلام ګډ او سلاطين ته    حافظ الپوري

**تابيه** :- (تا + بْ + يَه) [پ ، اس ، مؤ] و ــــ تابيا

**ــــ کول**:- (اص) و ــــ تابيا کول.

**ــــ کېدل**:- (اص) و ــــ تابيا کېدل.

**تاپ** :- (تا + پْ) [ه ، اس ، مذ] (۱) ګرمي ، تاؤ ، تپ ، تاپ (۲) تبه

د دانا نصیحت هسې رنګ دارو دے
چې ضعیف مزاج ئې وجارویست له تابه — مرزا انصاري

**تاپ** :- (تا + پْ) [پ ، ه : تهاپ ، اس ، صو جم د ډول یا د دبلې ټنګ .
**تاپخ** :- (تا + پ + خْ) [پ ، اس ، صو] د ماشوم سر راځرګندول او ورسره د پخ اواز کول ، تا راتا کول.
**ـــ کول**:- (اص) تاراتا کول ، د ماشوم سر راځرګندول او ورسره پخ اواز کول.
**تاپی** :- (تا + پَ + یَی) [پ (ګن) اس ، مؤ] په دېوال تپلې شوي غوشائي.
**تاپې** :- (تا + پَې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] تاپی ، اوچ زردالو ، خشکې مندتې ، اوچې خرمانی.
**ـــ کول**:- (اف) اص.مندتې اوچول ، زردالو خشکول.
**ـــ کېدل**:- (اف) اص.مندتې اوچېدل ، زردالو خشکېدل .
**تاپېړه** :- (تا + پې + ړَه) [پ ،اس ، مؤ ، وا ، ج : تاپېړې] څپېړه ، څپړ ، د لاس ګذار ، ټاپېړه.
**تات** :- (تا + تْ) [پ (ظفر) ص ، مذ] ترټرے ، ترټرے ، هغه څوک چې د خبرو په وخت ئې ژبه نښلي.چاړا ، چاړے.
دراز ذکـر بـه پـه کـومـه ژبـه اوکـه
عـالـم کـوږن پـه دواړو غـوږو عرف تات دے — سکندر ختک
**تاتا** :- (تا + تا) [پ ، اس ج د پښتونخوا په ځینو علاقو کښې د مشر دپاره د کاکا ماما په ځاے وئیلے کېږي.
**تاتار** :- (تـا + تـا + رْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] د یـاغي یـا غرئیـز وېلنـي (پودینه) په شان یو قسم وابنۀ.
**تاتار** :- (تا + تا + رْ) [اس ، معرفه ، مذ] یو ملک .
د کشمیر که د فرخار که د تاتار دي
ښائسته زما ښۀ یار دے سیال دواړه — خوشحال
**تاتاري** :- (تا + تا + رِيْ) [اس ، ص] د تاتار سره تعلق لرونکے ، د تاتار د ملک یا سیمې.
معطر د شاه د زلفو نه رادرومي
ستا له زلفو نافه زار شه تاتاري — خوشحال
**تاتره** :- (تا + تْ + رَه) [پ ، اس معرفه ، مؤ] د خېبر په سیمه د غرۀ یوه دنګه څوکه
**تـاترین** :- (تـا + تْ + رِيْ + نْ) [پ ، اس ، مـذ] (۱) ډېـره ژوره کنـده ، ډېـره کښته (۲) دوزخ.
د هـجران د تـاتـرین نه به بهر شم
کــه ئــې اونـښتم د زلفو سره زۀ — احمد دین طالب
پـرېـوت تـاترین ته ابوجهل قریشي وۀ
وخـت حـبشي بـلال د دین په کنګرې لوړېږي — حافظ الپوري
**ـــ ته غورزول**:- (اص) (۱) ډېرې ژورې کندې ته اچول (۲) چاته زیات نقصان رسول (۳) دوزخ ته غورزول.
**ـــ ته لوېدل**:- (اص) (۱) کندې ته لوېدل (۲) تباه کېدل.
**ـــ ځاے کول**:- (اص) نوم نشان ورکول ، تباه کول.
**ـــ ځاے کېدل**:- (اص) (۱) نوم نښان ورکېدل ، تباه کېدل (۲) دوزخي کېدل
**تاتمل** :- (تا + تْ + مْ + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مـذ] زیـات شوق ، تلوسـه ، ارزو ، خواهش ، لېوالتیا
**ـــ درلودل**:- (اف) اص ، تاتمل لرل ، ډېره تلوسه لرل.
**ـــ لرل**:- (ظفر) اص.و ـــ تاتمل درلودل.
**تاته** :- (تا + تَه) [پ ، ضمیر مخاطب] تاوته ، تاله ، توته ، درته
**تـاتي** :- (تـا + تِيْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] بـوډۍ ښـځه ، عمـر خـوړلې زنانه ، ترور ، ابی.
**تاتې** :- (تا + تې) [پ (وز) اس ، مؤ] تـاتیئې ، تتـی ، ټوټې ، د ښـورا راخسـتو دپاره د لرګي نه جوړ د وړوکي ښانک پشان لوښے.
**تاثیر** :- (تا + ثِيْ + رْ) [ع ، اس ، مذ] اثر ، خاصیت
**ـــ څرګندول**:- (اص) اثر ښکاره کول ، خاصیت ظاهرول.
**ـــ څرګندېدل**:- (اص) اثر ښکاره کېدل ، خاصیت ظاهرېدل
**ـــ کول**:- (اص) اثر کول ، خاصیت څرګندول.
**ـــ ګڼل**:- (اص) اثر شمارل ، خاصیت شمارل.
**ـــ لرل**:- (اص) اثر لرل ، خاصیت لرل.
**تـاج** :- (تـا + جْ) [فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : تاجُونه] (۱) بادشـاهي ټـوپی (۲) د چرګ پړپره ، قرقره یا د سر څونډے ، چوټی.
د عشق تاج به د هغۀ په سر حرام وي
چې د یار د پاره خاورې په سر نۀ کا — خواجه محمد بنګش
**ـــ پـه سـر کـول**:- (اص) (۱) بادشـاه جوړېـدل (۲) بادشاهي ټـوپی پـه سـر کښېښودل (۳) مشهورې موندل ،
**تاج پوشي** :- (تاج + پو + شِيْ) [فا ، اس ، مؤ] (۱) تاج په سر کول (۲) بادشاه جوړېدل (۳) د بادشاه د جوړېدو دستوره .
**تاجـدار** :- (تـاج + دا + رْ) [فـا ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : تاجـداران (مـؤ ، وا : تاجداره ، ج : تاجدارې) ] تاج لرونکے ، بادشاه.
**تاجر** :- (تا + ج + رْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : تاجران (مؤ ،وا : تاجره ج : تاجرې ) ] سوداګر ، پلورې ، وپاري.
**تاجـک** :- (تـا + جَ + کْ) [پ ، اس ، مـذ (مـؤ ، وا : تاجکـه ، ج : تـاجکې)] پـه افغانستان کښې میشته د یوې قبیلې نوم .
**تـاج ګیـر** :- (تـاج + ګِـيْ + رْ) [اف : پ (قـاموس) اس ص] آتـش ګیـر ، اور اخستونکے.
**تاج ګیري** :- (تاج + ګِيْ + رِيْ) [پ (ګن) اس ، مؤ] تاځګیري ، سترې مشي ، خوار مشي.روغ بړ ، لاس پنجه ، تازګیري
**تاجو** :- (تا + جُوْ) [پ ، اس ، تصغیر ، مذ] د تاج اسم تصغیر .
**تاخ** :- (تا+خْ) [پ (ګن) اس ،مذ] تاخت ، منډه ، زغل ، دۀ ، زغاښت.
زړۀ مـې پـه تـاخ کښې د نـسیان مه ږده
ورسـره لـوبـې مشـغـولا زده کړه — حمزه شنواري
**ـــ کول**:- (ګن) اص.منډه کول.زغلېدل ، دۀ کول ، تښتېدل
**تـاخ** :- (تـا + خْ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج : تاخُونه] تاخچه ، طاق ، په دېوال کښې د ډیوې یا نور سامان کښېښودو دپاره جوړ ځاے.
**تاخت** :- (تا + خْ + تْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : تاختُونه] زغل ، تاخ.
چـې هر دم پـرې د نیستی تاختونه کېږي
هـے تـوبـه شـه د حمید له دې هستی — 
**ـــ و تاراج** :- (اص) تباهي ، لُوټ ، شوکه.
چې لـه مـانـه پـټـېدۀ پـه لـویو غرونو
ستا په زور راباندې کړه تاخت و تاراج — بېدل
**تاخچه** :- (تا + خْ + چَه) [پ ، فا : طاقچه ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تـاخچې] و- تـاخ توکے ، ج ، توکي.
**کار په تاخچه کښې ایښـول** :- (اص) څۀ کـار هېـرول ، د یـوې چـارې نـه ځـان بـې پروا شان کول ، د یو کار کول پرېښودل.
**تـاخُوم** :- (تـا + خُوْ + م) [اف : پ (قـاموس) فـا : تـاخ ، اس ، مـذ] تاغۀ ، یـو قسـم غرئیزه ونه چې لرګي ئې د سوځولو په کار راځي.او اور ئې تر ډېره وخته پائي
**تاخُون** :- (تا + خُوْ + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د زړۀ رنځ ، د زړۀ نُول.

ویـر د میـنې مې تا څُون په زړۀ کښې کښېښود

نـۀ مـې ویـنې بـې ژړا بـې واویـلا ځوک عیسٰی اخونزاده

**تاخیر** :- (تا + خِيْ + رْ) [ع ، اس ، مذ ] ځنډ ، ډېرې ، معطلي ، ډيل ، سستيـ

**ـــــ کول**:- (اص) ځنډ کول ، سستي کول ، ډيل کول ، ډېري کول

**ـــــ کېدل**:- (اص) ځنډ کېدل ، سستي کېدل ، ډيل کېدل ، ډېري کېدل.

**تاداو** :- (تا + داو) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) تاداۍ ، رده ، ایره ، بنیاد ، (۲) لار ټاکنه.

**ـــــ ایښودل**:- (اف) اص.رده کښېښول ، بنیاد ایښودل.

**ـــــ کېښل**:- (اف) اص.بنیاد کښېښول.

**د تاداو تیږه ایښودل** :- (اف) سنګ بنیاد یا بنیادي تیږه کښېښول ، په آباد کولو شروع کول.

**تـادا ے** :- (تـا + دا + ے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] تـاداو ، ایـر ، رده ، بنیاد .

**تـادي** :- (تـا + دِيْ) [پ ، اس ، مؤ] بیـړه ، تیـزي ، جلتـي ، جلـدي ، تُنـدي ، تلوار .

**ـــــ جوړول**:- (اص) ډېره زیاته بیړه کول ، ډېره تندي کول.

**ـــــ کول**:- (اص) تندي کول ، بیړه کول ، جلتي کول.

**ـــــ کېدل**:- (اص) تُندي کېدل ، بیړه کېدل ، جلتي کېدل.

**تادیب** :- (تا + دِيْ + بْ) [ع ، اس ، مذ] تنبیه ، روزنه.

د چا زخم د چا حد د چا تـعـزیر د ے

هر سړے په خپل انداز مومي تادیب خوشحال

**تار** :- (تا + رْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : تارونه] (۱) د سپـښـو تـار ، مـزے (۲) د بجلۍ تار یا مزے (۳) د ټیلیفون تار یا مزے (۴) ټیلیګرام ، د څۀ خبر استولو برقي پېغام (۵) رشته ، تړون ، یو والے ، خپلولي ، (۲) په مخه ، مُسلسل .

څـو زۀ بـنده ژوندے یم د هغو زلفو بنده یم

چې تـل ئې سل سل زړونه په هر تار دي مبتاد خوشحال

**ـــــ اچول**:- (سو) اص.تار نښلول ، ضد کول.

**ـــــ اخستل**:- (اص) (۱) څۀ تار یا مزے په بیعه اخستل (۲) تعلق پیدا کول ، دوستي جوړول ، مینه پیدا کېدل (۳) د رالېږلي برقي پېغام حاصلول.

**ـــــ استول**:- (اص) تار ورکول ، تار وهل ، تار لېږل ، د تار په ذریعه چاته خبر ورکول.

**ـــــ پرې کول**:- (اص) (۱) د بجلۍ ، ټیلیفون یا بل څۀ مزے شلول. (۲) تعلق پرې کول ، تعلق ختمول ، دوستي ختمول.

**ـــــ پرې کېدل**:- (اص) (۱) د بجلۍ ، ټیلیفون یا بل څۀ مزے شلېدل (۲) تعلق شلېدل ، دوستي ختمېدل.

**ـــــ ټنګول**:- (اص) (۱) د رباب ، سارندې یا څۀ بل ځیز د تار نه اواز ویستل (۲) د څۀ خبرې د ښکاره کلو یا معلومولو کوښښ کول ، (۳) د څۀ معاملې په حقله خپل خیال ظاهرول.

**ـــــ خوځول**:- (اص) (۱) تار ته حرکت ورکول (۲) لمسه کول ، بل چا ته د څۀ کار کولو په پټه ترغیب ورکول.

**ـــــ درلودل**:- (اص) رشته لرل ، تعلق لرل.

**ـــــ راتلل**:- (اص) څۀ برقي پېغام رارسېدل ، د څۀ واقعې نه د تار په ذریعه خبرېدل.

**ـــــ شلول**:- (اص) (۱) د بجلۍ ، ټیلیفون یا بل څۀ مزے پرې کول (۲) تعلق لرې کېدل ، دوستي ختمېدل.

**ـــــ غړل**:- (اص) (۱) تار غښتل (۲) سازش کول ، د څۀ ورانې کولو سر ایښودل.

**ـــــ غښتل**:- (اص) و ـــــ تار غړل.

**ـــــ لېږل**:- (اص) و ـــــ تار استول.

**ـــــ نښلول**:- (سو) اص.د یوې خبرې د پوره کولو دپاره ضد کول ، تار اچول.

**ـــــ وراُوړدول**:- (اص) (۱) یو ځا ے ته تار وررسول (۲) تعلقات جوړول ، دوستي زیاتول

**ـــــ ورسره اچول**:- (اص) رشته ورسره جوړول ، د چا سره تعلق پیدا کول ، په چا مئنېدل.

**ـــــ ورکول**:- (اص) و ـــــ تار استول.

**ـــــ وهل**:- (اص) و ـــــ تار استول.

**په تار اخته کېدل** :- (اص) (۱) د چا په وجه په څۀ معامله کښې ګېرېدل (۲) د یو داسې سړي سره مخامخ کېدل چې اله په اسانه ځان خلاصول ترې ګران وي

**پـه تـار اوړېـدل** :- (اص) (۱) د لګېدلي تـار بـل اړخ تـه اوښتل (۲) پـه تـار اختـه کېدل.

**په تار راغوښتل** :- (اص) تار ور وهل ، څوک په تار رابلل.

**په یو تار رغېدل** :- (اص) په یو مخه خبرې کول.

**تاراتا** :- (تا + را + تا) [پ ، اس ، مذ ] و ـــــ تاپخ

**ـــــ کول**:- (اص) و ـــــ تاپخ کول.

**تاراج** :- (تا + را + جْ) [فا ، اس ، مذ ] لُوټ ، شُوک ، تالان .

زۀ ئې مـحـتـاج کـړم درست ئې تاراج کړل

عـقـل کـه بـند کـړم نغوته ئې کله کړم خواجه محمد

**ـــــ کول**:- (اص) لُوټ کول ، شوکول ، تالاکول.

**ـــــ کېدل**:- (اص) لوټ کېدل ، شوکېدل ، تالاکېدل.

**تاراجي** :- (تا + را + جِيْ) [پ ، اس ، مذ ، وا] لوټ کوونکے ، شوکوونکے .

**تار په تار** :- (تار + پَه + تار) [پ ، ص، مذ] (۱) خور وور ، ګډ وډ ، بې ترتیبه ، تار تار .(۲) جدا جدا ، لرې لرې ، ګوښې ګوښې.

تورو زلفو مې خاطر کړو تار په تار

نۀ ئې مومم که ئې غواړم تار په تار حمید

خـدا ے چـې تـار پـه تـار یـاران بـیا سره راټول کا

تـوري خـاورې بـه پـه سـر د رنـتـبـول کا خوشحال

**ـــــ کول**:- (اص) (۱) ګډ وډ کول ، بې ترتیبه کول ، (۲) بېلول ، جدا کول ، سره لرې کول.

دا زمـا چې د یقین قوت په لاس شۀ

تـار پـه تار به لښکرونه د مجن کړم مرزا انصاري

**ـــــ کېدل**:- (اص) (۱) ګډ وډ کېدل ، بې ترتیبه کېدل (۲) بېلېدل ، جدا کېدل ، لرې کېدل.

په کثرت کښې تار په تار شوې

د مـا څـخـه لـه مـا دور مرزا انصاري

**تارپیډو** :- (تا + رْ پِيْ + ډو) [انګ ، اس ، مذ ] هغه بارودي آله چې د دښمن سمندري جهازونه پرې ویشتلے او غرقولے شي.

**تارپین** :- (تا + رْ + پِيْ + نْ) [اُر ، انګ ، ټرپنټائن ، اس ، مذ] ګنده بېروزه ، رانځړۀ.

**تار تار** :- (تا + ر + تا + رْ) [پ ، ص ، مذ] (۱) شلېدلے ، څیرې ویرې بڅه ، بڅه بڅانګوري.(۲) ول ول .

د هـغـو چـې د تـهـمـت په سپېرۀ غنو

د ناموس لمن تار تار شي حال ئې څۀ شيً طاهر کلاچوي

د مـرزا خـبـرې زمـنـځې د معني دي

چې غنچه ملو کې زلفې پرې تار تار کړم

ـــــ **کول**:- (اص) (۱) ذرې ذرې کول ، ریچې ریچې کول (۲) یو یو تار سره بېلول (۳) بې اتفاقه کول.

ـــــ **کېدل**:- (اص) (۱) یو یو تار سره بېلېدل ، (۲) ذرې ذرې کېدل ، ریچې ریچې کېدل (۳) بې اتفاقه کېدل.

**تار تارکي** :- (تار + تا + رَ + کي) [ پ (سو) اس ، مذ] د سپي او د سپۍ یو ځای کېدنه.

ـــــ **اچول**:- (سو) اص.د سپي سپۍ سره ننبلېدل.

**تارتوک** :- (تا + رْ + تو + کْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ډالۍ ، تحفه ، سوغات

**تارکښ** :- (تا + رْ + کَ + ښْ یا کَ + خْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] جولاګی ، غنی.

**تارکول** :- (تا + رْ + کو + لْ)[انګ ، اس ، مذ] د لُوکو تېل ، هغه تور شان تېل چې د سړکونو د پخولو په وخت د بجرۍ دپاسه اچولی کېږي .زونۀ ، رانځړۀ

**تارکی** :- (تا + رْ + کَ + یَی) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] وړه جولاګۍ ، ورکوټې غنې.

**تارګر** :- (تا + رْ + ګَ + رْ) [ اُر ، اس ، مذ ، وا ، ج : تارګرونه ] د تار وهلو دفتر ، ټیلیګراف آفس ، هغه دفتر چې تارونه ترې لېږلی شي.(تارګهر)

**تارګه** :- (تا + رْ + ګه) [ پ (بن) اس ، مؤ ، وا] شپول ، وېږه ، باړ ، بانۀ .

**تارُومه** :- (تا + رْ + لُو + مَه) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] لُومه ، د مرغو نیولو دام چې د ویښتو نه جوړ وي.

**تارو** :- (تا + رُو) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : تاروګان ، (مؤ ، وا : تاروګۍ ، ج : تاروګانې) ] تور تنزرے .

ستا نظر لکه تور باز زړۀ مې تارو دے
په تور باز د تور تارو غوښې روا شي خوشحال

**تارُو رنګې** :- (تارُو + رَ + نْ + ګې) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ] د تارو په رنګ ، د تور تنزري په شان.

**تارُوزے** :-(تا + رُو + زَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ،وا] تاروګے ، یو قسم پرپرکے

**تارُو غاړے** :- (تارُو + غا + ړَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ] مرز ، بټېر

**تاروګے** :- (تا + رُوْ + ګے) [ پ ، اس ،مذ ، وا] وــتارُوزے .

تاروګے په پتنګانو حسب نۀ دے
نفساني په عاشقانو حساب نۀ دے علي خان

**تارُومې** :- (تا + رُوْ + مَې) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو قسم خربوزه.

**تارونار** :- (تا + رو + نا + رْ) [ اف : پ (قاموس) ص ، مذ (مؤ ، وا : تارو ناره ، ج : تاروناري) ] کمزورے ، مانده ، ضعیف ، ډنګر ، بې خونده.

ـــــ **کول**:- (اف) اص.کمزورے کول ، مانده کول ، بې خونده کول ، ډنګرول.

ـــــ **کېدل**:- (اف) اص .کمزورے کېدل ، مانده کېدل ، بې خونده کېدل ، ډنګرېدل.

**تاروۀ تارخۀ** :- (تا + رْ + وۀ + تا + رْ + خۀ) [ پ ، ص ، مذ] تُرش او تریخ ، بدې ردې ، ملامتې.

وړې هزار تاوۀ تارخۀ د ناکسانو
وایه ولې په یوه نمړی حلوا حمید

**تارۍ** :- (تا + رَ + یَی) [ پ ، اس ، مؤ] لامبو ، لامبونه ، آب بازي

ـــــ **وهل**:- (اص) په اُوبو کښې لامبو وهل.

**تارے** :- (تا + رَے) [ پ (سو) اس ، مذ ، (مؤ : تارۍ) ] هغه څوک چې یوه خبره واوري نو بیا په پارُونو په هغې غور ېږي.

**تارۍ پیشو** :- (سو) اص.هر وخت غُور غُور کوونکې ښځه

**تاري** :- (تا + رِيْ) [ اف : پ (قاموس) ص ] سپنسین ، تارین ، د تار نه جوړ.

**تاریخ** :- (تا + رِيْ + خْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : تاریخونه ] (۱) یوه شپه ورځ ، د میاشتې یوه ورځ (۲) د څۀ واقعې پېښېدو ورځ .(۳) هغه فن یا کتاب چې د پخوانۍ زمانې واقعات په کښې لیکلي وي.(۴) په عدالت کښې د پېشۍ مقرره ورځ.

ددې لوے معمار په نوم تر قیامت پورې
د تاریخ زرینې پاڼې به نازېږي طاهر کلاچوي

ـــــ **ټاکل**:- (اص) تاریخ مقررول ، د څۀ کار د کولو دپاره ورځ نېټه کول ، د واۀ نېټه کښېښول.

ـــــ**لیکل**:-(اص) (۱) د څۀ واقعې ورځ لیکل ، (۲) په تاریخي واقعاتو کتاب لیکل.

ـــــ **مقررول**:- (اص) و ـــــ تاریخ ټاکل.

ـــــ **ورکول**:- (اص) په عدالت کښې د پېشۍ ورځ مقررول.

**تاریخي** :- (تا + يْ + خِيْ) [ پ ، ص ] (۱) تاریخ سره تعلق لرونکے (۲) اهم ، مشهور.

**تاریک** :- (تا + رِيْ + کْ) [ فا ، ص ، مذ (مؤ : تاریکه) ] تور ، تیارۀ .

چې باطن ئې آئینې غوندې تاریک وي
کوم کمال دے په ظاهره که څوک سپین شي طاهر کلاچوي

**تاریکه** :- (تا + رِيْ + کَه) [ پ ، ص ، مؤ] توره تیارۀ ، تاریکي

ـــــ **کول**:- (اص) توره تیارۀ جوړول.

ـــــ **کېدل**:- (اص) توره تیارۀ جوړېدل.

**تاریکے** :- (تا + رِيْ + کَے) [ پ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : تاریکیان] بایزید انصاري ته د هغۀ نظریاتي مخالفینو تاریکے نوم ورکړے وو .او خپلو مریدانو به ورته روښانے وئیل.

**تاریکي** :- (تا + رِيْ + کِيْ) [ پ ،ص ، مؤ] و ـــتاریکه .

چې یک تنها دې د لحد په تاریکي کښېږدي
افسوس به او کړې د قیامت په حېرانۍ باندې خواجه محمد

**تارین** :- (تا + رِيْ + نْ) [ پ ، ص] تاري ، د سپنسي نه جوړ.

**تاړ** :- (تا + ړْ) [اس ، مذ] د کجورې په شان یوه ونه چې تاړي ترې نه وباسي ، تاړه.

دا مستې دې په انګور دې یاله تاړه
چې وئې نۀ شې د خپل عادت له باړه مرزا انصاري

**تاړ** :- (تا + ړْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) غم ، (۲) چپاؤ ، تاړاک (۳) لویه ګټه ، غټ کاڼے (۴) د غلو ډله (۵) غلا ، شُوکه

**تاړاق** :- (تا + ړا + قْ) [ پ (سو) اس ، مذ] سُور نمر ، بیدې بېدیا

**تاړاک** :- (تا + ړا + کْ) [ پ ، اس ، مذ ] (۱) چپاؤ (۲) کړاک ، تکلیف ، مصیبت (۳) تالان ، لُوټ.

د اُوزبک تاړاک به هم دا هسې نۀ وي
لکه ستا د سترګو تاخت په خوارو تېر دے خوشحال

ـــــ **پر تېرېدل**:- (اص) تباه کېدل ، تالان پرې ګډېدل ، د تکلیف او غم سختې شپې ورځې پرې راتلل .

**په تاړاک اخته کول** :- (اص) په غم او مصیبت کښې ګېرول ، چا ته څۀ بده ورپېښول.

**په تاړاک اخته کېدل** :-(اص) غم او مصیبت کښې ګېرېدل ، چا ته څۀ بده ورپېښېدل.

**تاړاکوُونکے** :- (تا + ړا + کَ + وُوْ + نْ + کَے) [ پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : تاړا کوُونکي (مؤ : تاړاکوُونکې) ] تالان کوونکے .

**تاړۀ** :- (تا + ړۀ) [ پ ، ص ] (۱) تالاشوے ،تباه شوے ،لُوټ شوے

(۲) پرېشانه، خفه (۳) سپېرۀ (۴) خوار غريب ، بې بخته ، بد قسمته.

**تاړه** :- (تا + ړَه) [پ ، (ب، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : تاړې] کانډه ، تبی ، هغه کاڼي چې زيات سخت نۀ وي. اکثر خلق مېلې يا کوټې ترې جوړوي .

**تاړه** :- (تا + ړَه) [اف : پ (قاموس) ه : تاړ ، اس ، مؤ] د تاړ ونه.

**تاړي** :- (تا + ړِيْ) [پ ، س ، تالي ، اس ، صو ، مؤ] د دواړو لاسو پړک ، چکچکې.

**ـــ ټکول**:- (اص) تاړي وهل ، لاس پړکول ، تاړي ژغول ، تاړي کول

**ـــ ژغول**:- (اف) اص.و ـــ تاړي ټکول.

**ـــ کول**:- (اف) اص.و ـــ تاړي ټکول.

**ـــ وهل**:- (اص) و ـــ تاړي ټکول.

**تاز** :- (تا + زْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : تازان] غوزګرګې ، بزبزکې ، ډم ، چرچرانکې .يو قسم مُلخ چې په غوو کښې سُور کړې خوړې شي.

**تازده** :- (تا + زْ + دَه) [پ ، کلمه] تۀ پوهـ شه ، ددې کلمې سره کله کله د خدای تعالٰی نامه وئيلې شي. لکه : ''تازده او خدای''

که نيمګړې پياله راکړې ساقي ستا زده

همګې مدار په نيت دې باقي تاز ده      خوشحال

**تازر** :- (تا + زْ + رْ) [پ ، فا : چادر ، اس ، مذ ، وا ، ج : تازرُونه] څادر ، پړونې ، مېزر ، چکاله.ټيکرې ، پټکې

**تازګي** :- (تا + ﻍ + ګِيْ) [فا ، اس ، مؤ] تازه والی ، شين والی ، ځوربوالی ، څربنت.

**تازګيري** :- (تا + زْ + ګِيْ + رِيْ) [پ ، (ب، خ) اس ، مؤ] تاجګيري جوړ تازه ، سترې مشي خوار مشي. لاس پنجه.

**تازه** :- (تا + زَه) [فا، ص] (۱) نوی (۲) شين ، راټوکېدلی ، ښېرازه خوشحال (۳) يار ، تکړه ، مضبوط (۴) د سترې مشې په وخت جوړ تازه وئيلې کېږي (۵) د باسي ضد ، لکه : '' دا پکوړې تازه پخې دي''.

**ـــ کول**:- (اص) نوی کول ، د نوي سره جوړول.

دا جانان مې په مخ باندې حال تازه که

که جهان شولو په فيض د بهار شين شين      مطيع الله قريشي

**ـــ کېدل**:- (اص) (۱) شين کېدل ، راټُوکېدل ، ښېرازه کېدل . (۲) ستوماني وتل ، کار ته د نوي سره تيارېدل (۳) نوی کېدل.

ستا د حسن ګلستان نۀ تازه کېږي

څو روان پکښې د اوښکو جوئيار نۀ کړم      کامګار خټک

**تازه والی** :- (تا + زَه +وا + لَی) [پ ، اس ، مذ] و ـــ تازګي

**تازي** :- (تا + زِيْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : تايان] (۱) ښکاري سپی (۲) عربي اسپه (۳) عربي ژبه

**تازيانه** :- (تا + زْ + يا + نَه) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تازيانې] (۱) چابک ، متروکه ، ښېنت (۲) تنبيه ، دبکه ، خبردارې ، هدايت

**تاس** :- (تا + سْ + [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : تاسُونه] لوی ښانک ، لويه تالی ، ستر کنډول.

**تاسپاني** :- (تا + سْ + پا + نِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] پتنی ، د مال تقسيم ، بخره حصه.

**تاسلې** :- (تا + سْ + لَې) [پ (ظفر) اس ، مذ ، وا ، ج : تاسلي] کاسه پتيله يا هغه ديګچې چې خولۀ ئې ارته وي.تاشله.

**تاسو** :- (تا + سو + [پ ، ضمير مخاطب] تاسې ، توسې ، د تا جمع لکه : ''تاسو راغلئ''.

**تاسې** :- (تا + سې) [پ ، ضمير مخاطب] و ـــ تاسو.

**تاش** :- (تا + شْ) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : تاشونه ، تاشينه] يوه لوبه چې دوه پنځوس پاڼې لري او څلور رنګه يعني چيړ ، پان ، اينټ او حُکم پکښې وي .په هر رنګ کښې د يو نر تر لسو پورې هندسې ، يو غلام ، يوه بېګم او يو بادشاه وي .په دې لوبه کښې د هر رنګ اول پاڼې ته يکه وئيلې شي.

**ـــ حورول**:- (اص) د تاش پاڼې د لوبې په وخت کښې ترتيب کول.

**ـــ کول**:- (اص) د تاش لوبه کول.

**ـــ وېشل**:- (اص) د تاش د لوبې په وخت کښې تاش کوونکو ته پاڼې تقسيمول.

**تاش په تاش** :- (تا + ش + پَه+ تا + شْ) [اف : پ (قاموس) ص] تاشي پتاشي ، خور وور ، ګډ وډ .

**ـــ کول**:-(اف) اص.تاشي پتاشي کول ،ګډ وډ کول ، خور وور کول

**تاشله** :- (تا + شَ + لَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ،وا : ج : تاشلې] و ـــ تاسلې.

**تاشي په تاشي** :- (تا + شِيْ + پَ + تا + شِيْ) [اف : پ (قاموس) ص] و ـــ تاش په تاش.

**ـــ کول**:- (اف) اص.و ـــ تاش په تاش کول.

**تانبه** :- (تا + شَه يا خَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] غښتلې ، تار ، تاؤ کړې تار.

**تاغار** :- (تا + غا + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : تاغارونه] د خاورو ښانک ، کنډول.

**تاغارک** :- (تا + غا + رَ+کْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] جل ، هغه مرض چې سړې په کښې ډېر تږې کېږي او خولۀ پکښې اوچه وي.

**ـــ کېدل**:- (اف) اص.جل کېدل ، د تږې کېدو مرض کېدل.

**تاغاري** :- (تا + غا + رِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص] (۱) خېټو ، ډېر خوراکي ، خوره (۲) جل وهلی ، د تندې په مرض اخته.

**تاغګه** :- (تا + غْ + ګَه) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ ، وا ، ج: تاغګې] تاغه ، توغۀ ، تاخ

**تاغو** :- (تا + غُوْ) [پ (سو) اس ، مذ ، وا ، ج : تاغان] يوه ونه چې زېړې او غونډې دانې نيسي .بنيادم ئې خوري .څو زيړ قوچ نومې فصلي مرغۍ ئې ډېر په شوق خوري .اکثر حکيمان ئې د سترې تبې (ميعادي) مريض ته ورکوي.

**تاغه** :- (تا + غَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـــ تاغګه

**تاق** :- (تا + قْ) [پ ، مهـ] ع: طاق ،اس ،مذ ، وا ، ج : تاقونه] تاک تاخ ، توکای

**تاقۍ** :- (تا + قَ + يَۍ) [پ (ظفر) اس ، مؤ] کړکۍ.

**تاقې** :- (تا + + قَې) [پ (سو) اس ، مذ] (۱) د سوې غار (۲) د جوارګرو د پټېدو ځای (۳) د چړې چاقو تيکې.

**تاک** :- (تا + کْ) [فا ، اس ، مذ] (۱) کمر ، د غرۀ نېغ ولاړ ستغ (۲)لپه ، چونګ (۳) د انګورو نه (۴) طاق ، ټاک ، د جُفت ضد

**تاک جُفت** :- (تاک + جُ +فْ + تْ) [پ ، اس ، مذ] يوه لوبه چې يو کس په لاس کښې څه کاڼي يا دانې اونيسي او بل کس ئې په نه ليدو تاک يا جُفت غواړي.ټوک زوت.

**ـــ کول**:-(اص) بيا بيا ويل ،ټينګه کول ، چېټه کول، ټينګټيا کول

**تاکيداً** :- (تا+ کِيْ + دَ + نْ) [ع ، اس ، ډېر په ټينګه ، په چېټه ، بيا بيا وېنا ، په زور سره.

**تاګټ** :- (تا + ګَ + ټْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ميرګټ ، د لاس په شا پروت څيز ورغوي ته را اړول.

**تاگي** :- (تا + گَ + يَي) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] د کېږدۍ يوه تا يا تهه.

**تال** :- (تا + لْ) [پ ، ه : تهال ، اس ، مذ ، وا ، ج : تالونه] (۱) لوے ښانک ، (۲) رمباړه ، د غوا اواز (۳) د مصنوعي مالگې تالاب (۴) د موسيقۍ وزن (۵) چال ، رفتار (۲) د لور خور وادۀ په وخت د هلک د طرفه د پيسو ورکولو رسم.

پښتانۀ لکه مگس وربانې گرځي
ورته ښيي د مغل د حلوا تال دے — خوشحال

**—— اخستل** :- (اص) په لُور خور پيسې اخستل.

**تالا** :- (تا+لا) [پ ، ص] برباد ، تباه و لُوټ شوے.

**—— کول** :- (اص) لوټل ، شوکول ، بربادول .

ستا په تور مې مال تالا مانۍ نړېږي
راته گوره که په دا دې زړۀ سرېږي — خوشحال

**—— کېدل** :- (اص) بربادېدل ، لوټ کېدل ، شُوکېدل.

**تالا** :- (تا + لا) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تالې] کُنجي ، کُلپ

**تالاب** :- (تا + لا + بْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : تالابونه] تالاؤ ، حوض ، د اوبو ډنډ .

په هر وخت چې د تالاب اوبۀ شي کمې
په ماهي باندې دا خپل صورت شي پنډ — مرزا خان انصاري

**تالا ترغا** :- (تا + لا + تَ + رْ + غا) [پ ، ص] لوټ شوے ، تباه کړے شوے ، تالاوالا.

**تالا توب** :- (تا + لا + تو + بْ) [پ ، اس ، مذ] لوټ ، شُوکه

**تالار** :- (تا + لا + رْ) [فا ، اس ، مذ ] هال ، لويه کوټه ، چېرته چې غونډې کېږي لکه :- "په ۲۹ نېټه د عامې روغتيا په تالار کښې د ټاکلي پروگرام سره سم يو شمېر ليکوالو وېناوې وکړې"

**تالاش** :- (تا + لا + شْ) [اس ، معرفه ، مذ] د دير په ضلع کښې د کامراني کنډۀ نه سوېل ته پرته علاقه.

خان مې ورک کړو د دلبر په الاباش
بيا مې نۀ موند په تدبير او په تالاش — علي خان

**تالاش** :- (تا + لا + شْ) [پ ، فا ، تلاش ، اس ، مذ] تلاش ، غوښتنه لټونه ، ډُونډ

**—— کول** :- (اص) تلاش کول ، لټول ، غوښتل.

**—— کېدل** :- (اص) لټېدل ، تلاش کېدل ، غوښتلے کېدل.

**تالاشي** :- (تا + لا + شي) [پ ، فا] تلاشي ، لټونه ، د چا کور يا جېبونه په څۀ څيز پسې کتنه.

**تالا کونگ** :- (تا + لا + کَ + وَ + نْ + گْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و —— تالا کونه.

**تالا کونه** :- (تا + لا + کَ + وْ + نَه) [پ ، حمص] تالاکونگ ، لُوټ کونه ، شُوکه کونه.

**تالا کوُونکے** :- (تا + لا + کَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : تالا کوُونکي (مؤ : تالاکوُونکې) ] لوټ کوونکے ، شوکه کوُونکے .

**تالا کېدنگ** :- (تا + لا + کې + دَ + نْ + گْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و —— تالاکېدنه.

**تالا کېدنه** :- (تا + لا + کې + د + نه) [پ ، حمص] تالاکېدنگ ، لوټ کېدنه، شوکېدنه.

**تالا کېدُونکے** :- (تا + لا + کې + دُو + نْ + کَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : تالاکېدونکي (مؤ : تالاکېدونکې) ] لُوټ کېدونکے ، شوکېدونکے .

**تالاگر** :- (تا + لا + گَ + رْ) [اف : پ (قاموس) فا ع ، مذ (مؤ ، وا : تالاگره ، ج : تالاگرې) ] لوټ مار کوونکے ، شوکه کوونکے ، تالاکوونکے ، تالاتے.

**تالان** :- (تا + لا + نْ) [پ ، اس ، مذ ] (۱) لُوټ ، شُوکه (۲) گړ بړ،تيا افراتفري ، اړے گړے.

**—— جوړول** :- (اص) (۱) تالان گډول ، لوټ شروع کول او په شوکه لاس پورې کول (۲) افراتفري پېدا کول ، اړے گړے جوړول ، گړبړ جوړول.

**—— گډول** :- (اص) و —— تالان جوړول.

**دوېش نه په تالان خوشحالېدل** :- مح (۱) رسم وېش او برابر کار په ځاے په لوټ او په تباهۍ خوشحالېدل (۲) په اړې گړې او گړبړ خوشحاله کېدل.

**تالانے** :- (تا + لا + نَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : تالانيانې] (۱) تالاگر ، لوټ مار (۲) بې پروا ،

**تالاؤ** :- (تا + لاؤ) [پ ، فا : تالاب ، اس ، مذ ، وا ، ج : تالاوونه] و —— تالاب.

**تالاوالا** :- (تا + لا + وا + لا) [پ ، ص] (۱) و —— تالاترغا ، (۲) خور وور ، گډوډ .

پوهه يم دا ناز او ادا گانې به بيا نۀ کړې چېرې
خو که زما د زړۀ جهان تالاوالا ووينې — مطيع الله قريشي

**—— کول** :- (اص) (۱) لوټ کول ، تاؤ ترغا کول (۲) خور وور کول ، گډ وډ کول.

**—— کېدل** :- (اص) (۱) لوټ کېدل ، تالاترغا کېدل (۲) خور وور کېدل، گډ وډ کېدل

**تالاينه** :- (تا + لا + يْ + نه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] تالاکونه ، د لُوټ کونې او شُوکې کونې طرز.

**تالره** :- (تا + لْ + ره) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] يوه برگه غرئيزه مرغۍ.

**تالنده** :- (تا + لْ + نْ + ده) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : تالندې] تنا ، تندر ، د آسمان گړزا .

**—— کېدل** :- (اف) اص ـ تنا کېدل ، اسمان گړزېدل

**تالُو** :- (تا + لُوْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : تالوگان] کومے ، حلق

**—— پورته کول** :- (اف) اص ـ ژبۍ اخستل ، ژبۍ چگول ، په ټوپه د تالو لوېدلي ماشوم علاج کول.

**—— خوږېدل** :- (اف) اص ـ کومے خوږ خوږ کېدل.

**—— لوېدل** :- (اف) اص ـ (۱) ژبۍ کېدل ـ دا بيماري اکثر ماشومانو ته لگي ـ چې په دستونو شي او په کلو کښې خلق ټوپې پرې کوي (۲) يربدل ، ويربدل ، ډرېدل.

**—— ورته لوېدل** :- (اف) اص ـ څۀ څيز ته ډېر زيات شوق يا خواهش پېدا کېدل

**تالوده** :- (تا + لُو + دَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : تالودې] پلې،پياده ، په خپلو پښو .

**—— کول** :- (اف) اص ـ پلې کول ،

**تاله** :- (تا + له) [پ ، حرف ، مخاطب] تاته ، تالره .

**تاله** :- (تا + لَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : تالې] (۱) د ستيتهوسکوپ سرته شيشه شان ، (۲) هغه وابنۀ چې د بهار په موسم کښې په مېدانونو کښې راټوکېږي.

**تاله** :- (تا + له) [اف : پ (قاموس) ص] تله ، وزن

**په تاله يو من کېدل** :- (اف) اص ـ په وزن يو من ختل .

**په تاله ورکول** :- (اف) اص ـ په تول يا وزن کول ، په تله ورکول.

**تالي** :- (تا + لْ + يِيْ) [پ ، ه : تهالي ، اس ، مؤ] رکيبۍ ، وړوکے تال

**تالي** :- (تا + لي) [اف : پ (قاموس) ع : طالع ، اس ، مؤ] بخت ، اقبال ، برخه ، نصيب ، قسمت.

**تالي څټ** :- (تالي + څْسَ + ټْ) [پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ : تالي څټه ، ج : تالي څټې) ] (۱) په پردي تالي باندې عادت ، د نورو جوته خوړونکے

(۲) خوشامدګرے۔

**تـالیف**:- (تـا + لـيْ + فْ) [ع ، اس ، مـذ ، وا ، ج : تالیفونـه] (۱) د مختلفـو مضـمونونو پـه کتـابي شـکل کښـې راغونـډول (۲) د دوؤ څیزونـو یـو ځاے کول ـ

چـې دا فـهم مـحبت وب له ورشي

توره شپه ئې ربا ورځ شي له تالیفه        مرزا خان انصاري

**تـالي مـن**:- (تـا + لـي + مْ +نْ) [اف : پ (قـاموس) اس ص ، مـذ (مؤ ، وا : تالېمنـه ، ج : تـالېمني) ] بختـور ، اقبـال مـن ، د بخت خاونـد ، د برخي خاوند ، خوش قسمته۔

**تام**:- (تا + مْ) [پ (سو) مخفف] تمام ، پوره ، ټول

**تا مبوالي**:- (تا + مْ + بوُ + وا + لِيْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هغه ښځې چې د ناوې د اوربل خورولو او د سنګارولو په وخت کښې ورسره وي۔

**تـامبوزے**:- (تـا + مْ + بُـوْ + زَے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : تامبوزي] تمبوزے ، تربوزک ، کُچبېز ، مول۔

**تامبول**:- (تا + مْا + بو + لْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : تامبولونه] د غنې جاله ، د جولاګي جاله۔

**تامبـه**:- (تـا + مْ + بَـه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : تـامبې] تمبـو ،خېمه ، کېږدۍ

**تامبه**:- (تا + مْ + بَه) [پ ، ه : تامبا ، اس] مس ، سُورول

**تامپېکي**:- (تا + مْ + پَ + نْ + کي) [پ (سو) اس ، مذ ، وا ، ج : تـامپېکي] د ګټې یا د لرګي نرۍ پلنه ټکړه و تمبې خے۔

**تامړے**:- (تا + مْ + ړَے) [پ (سو) اس، مذ ، وا ، ج : تامړي] د تامبې یا ټیم معمولي شان وړه ټکړه۔

**تـامبېړ**:- (تـا + مْ + بې + ړْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : تامبېړونـه] ډېره غټه او اوراه ګټه چې پاس پرې خاته ګران وي۔

**تـامبېړي**:- (تـا + مْ + بې + ړِيْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] (۱) د کشـتۍ څپېړه یا چپو (۲) د ورکوټې کرکۍ د تمبې یو پټ یا ور۔

**تاموس**:-(تا+مُوْ+سْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] خارش و خارښت۔

**تان**:- (تا + نْ) [پ ، ه : تهان ، اس ، مذ ، وا ، ج : تانُونه] د ټوکي ، رخت یا کپړې یو مقدار چې د شلو نه تر پنځوسو ګزو پورې وي۔

**تان**:- (تا+نْ) [اف : پ (قاموس) ص ،مذ ] رغونه ، جوړښت ، بناوټ

**تان**:- (تا + نْ) [ه، اس ، مذ ] د موسیقۍ سُر۔

**تاند**:- (تا + نْ + دْ) [پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا: تانده ، ج : تاندې] تازه اُوبجن ، ښېرازه ، شین۔

**تاند**:- (تـا + نْ + دْ) [پ (سو) ص ، مذ ] راکښلے شـوے ، سخت ، د رباب ، سارندې یا لیندې کلک راکښلي شوي تارونه۔

**تانـدتیا**:- (تـا + نْ + دْ + تْ + یـا ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] تـازه والے ، ښېرازي ، شین والے۔

**تاندلبان**:- (تـا+ نْ + دْ + لْ+ بـا + نْ) [اف : پ (قـاموس) ص ، مذ (مؤ وا : تانده لبانه ، خ : تاندې لباني) ] ځواني مرګ۔

**ـــــ کېدل**:- (اف) اص۔ځواني مرګ کېدل ، په ځواني کښې مړ کېدل

**تاندوبـه**:- (تـا + نْ + دو+بـه) [پ ، اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج: تانـدوبې] اوبوسـه ، آبي زمکه ، آوي۔

**تانـدول**:- (تـا + ن + دْ + وْ+ لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص مـت] (۱) تـازه کـول ، ښېرازه کول (۲) د وړۍ د تـار د ورېشلو یـا غښـتلو پـه وخت یـو ګـز قـدر غزول او تاوول ، بیا راتېرن یا ډېرن نه راځرخول (۳) راکښل ، ټینګول۔

**تاندوله**:- (تا + نْ + دو + له) [اف : پ (قاموس) اس ،مؤ] یو قسم ساګ ، سور ګولے ، تندولے۔

**تاندونه**:- (تا+ نْ + دو + نه) [اف : پ (قـاموس) حمص] (۱) ښېرازه کونه ، تـازه کونه (۲) د وړۍ تار غښتنه (۳) ځۀ ځیز راکښنه یا ټینګونه۔

**تانده**:- (تا + ن + ده ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تاندې ] (۱) ښېرازه ، تـازه (۲) جاري اوبۀ (۳) هغه ښځه چې په حمل وي ، هغه زنانه چې اُمېنـد ئې وي۔

**ـــــ کېدل**:- (اص) (۱) ښېرازه کېدل ، تاندېدل ، تازه کېـدل (۲) اوبـۀ جـاري کېدل (۳) د ښځې حمل کېدل ، دزنانه اُمېند کېدل۔

**تانده**:- (تا + نْ + ده ) [اف : پ (قاموس) اس مؤ ، وا ، ج : تاندې] د وړۍ یو ګز قدر غښتلے تار۔

**ـــــ کول**:- (اف) اص۔د وړۍ تار غښتل۔

**تانده**:- (تا + نْ + دَه) [پ ، اس معرفه ، مؤ] د کوهاټ ښار سره نزدې یـو ځـاے چېرته چې د اوبۀ خور دپاره بند تړلے شوے دے۔

**تانـده بانـده**:- (تـا + نْ + ده + بـا + نْ + ده) [اف : پ (قـاموس) مـؤ] ټېرېدنـه ، کړېدنه ، تړپېدنه۔

**تانـده ونـه**:- (تـا +نْ +دهْ + وْ +نـه ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] نـوے راټوکېدلے بوټے۔

**تانـده ونـه**:- (تـا + نْ + ده + وْ +نـه) [پ ، حمـص] (۱) ښېرازونه ، تـازه کونـه (۲) وړین یا سپین سین تار راکښنه۔

**تاندېدل**:- (تا + نْ + دې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] (۱) ښېرازه کېدل ، تازه کېدل (۲)حامله کېدل ، په اُمېند کېدل ، (۳) راکښلے کېدل ، ټینګېدل۔

**تاندېدنـه**:- (تـا + نْ + دې + دْ +نَـه) [پ ، حمـص] (۱) ښـېرازه کېدنـه ، تـازه کېدنه (۲) حامله کېدنه ، په اُمېند کېدنه (۳) راکښلے کېدنه ، ټینګېدنه

**تانه**:- (تا + نَه) [پ ، ه : تهانه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تانې] د پولیس ځوکۍ۔

**تانه**:- (تا + نه) [پ ، اس ، معرفه] په ملاکنډ ایجنسۍ کښې یو مشهور کلے

**تانۍ**:- (تـا + نۍ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ] (۱) ټغرګے ، کمبلۍ ورکوټے ټغر (۲) د سودا ټپې یا تړون۔

**ـــــ وهل**:- (اف) اص۔د سودا ټپې ورکول یا پوخ تړون کول۔

**تانۍ**:- (تا + نۍ) [پ ، اس ، مؤ] د جولاتنسته ، تانسته

**تانسته**:- (تا + نَ + سْ + تَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تانستې] تانۍ تنسته۔

**تان سېن**:- (تـا + نْ + سې + نْ) [ه ، اس معرفـه ، مذ ] د اکبر بادشاه د زمـانې یو مشهور درباري سندرغاړے ، ددۀ راګونه تر ننه یادېږي

**تانګ**:- (تـا + نْ + ګْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : تانګونه] هغـه پټـۍ چـې د اس په خېټه راتاؤ شوي وي او زین پرې مضبوط شوي وي۔

**تانګه**:- (تا + نْ + ګه) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تـانګې] ټانګـه ، هغـه ګـاډے چې اس ئې راکاږي او اکثر د کوچوان نـه عـلاوه څلور کسـان پکښـې کښېني ، بګۍ

**تانګۍ**:- (تا+نْ + ګَ +یَی) [پ (ظفر) اس ، مؤ] وندنے ، د وښو پړے

**تانیث**:- (تا + نِيْ + ثْ) [ع ، اس] د مذکر ضد ، مؤنث کېدل۔

**تـاؤ**:- (تـا+ؤ) [پ ، فـا : تـاب ، اس ، مـذ] (۱) ګرمـي ، تـاب ، تـب ، اور (۲) تېـزي ، تُنـدي ، سختي (۳) زور (۴) غصـه ، قهـر (۵) ول ، پېچ و خـم (۲) غښتنه ، بوښه (۷) نس خُوږے۔

زر بـــــه ســـم د بـــېلـتـانـۀ پــه یـوه تاؤ شي

کــه غــلط چـا څـخه ځان وي په خپل زور کښې        حمید

پـه حـکمت بـه ئې ونه کاږي طبیبه

ما د غم غشې خوړلے دے په تاؤ کښې        بېدل

دغه وهم چې د شک په ساړه کلک دے
پـه اخر بـه د تـوحـيد پـه تاؤ شي گرم مرزا خان انصاري

**ـــــ اخستل**:- (اص) (۱) غصه کېدل ، قهرېدل (۲) کرېدل (۳) غبنتلے کېدل (۴) د گرمی نه بیمارېدل ، گرمی وهل

**ـــــ پورته کېدل**:- (اص) براس ختل ،

**ـــــ خوړل**:- (اص) د غصې نه تاوېدل ، زړۀ ته درد رسېدل.
لکه بند بلبله تاؤ خورم په قفس کښې
چې جدا يم ستا د وصل له بهاره خوشحال

**ـــــ كول**:- (اص) (۱) تاوول ، غبنتل ، (۲) گرمي كول (۳) درد كول (۴) تبه راتلل

**ـــــ كېدل**:- (اص) (۱) خېته کښې پېچش پيدا کېدل (۲) تاوېدل ، مخ گرځول

**ـــــ وركول**:- (اص) (۱) گرمول (۲) غبنتل.

**ـــــ ويستل**:-(اص) (۱) کوږوالے ويستل ، څۀ مزے يا رسی راکښل (۲) د زړۀ براس ويستل.

**په تاؤ كېدل** :-(اص) (۱) ډېر تېزېدل (۲) چورېدل ، گډېدل ، پېر خوړل

**چاته په زړۀ كښې تاؤلرل** :- (مح) چا دپاره په زړۀ کښې بغض او کينه لرل ، چاته پټ په پټه غصه کېدل.

**چاته تاؤ راتلل** :- (اص) چاته په زړۀ كښې غصه ، كينه لرل ، چاته پټه په زړۀ کښې سُوخت لرل.

**دزړۀ تاؤ پرې سړول** :- (اص) (۱) غصه پرې ايستل (۲۹ د زړۀ سود پرې كول

**دزړۀ تاؤ کول** :- (اص) زړۀ په څۀ خبره نُولېدل ، په زړۀ زړۀ كښې سوختېدل.

**لرمانۀ ته تاؤ پربوتل** :- (مح) پټ پټ نولېدل ، په زړۀ زړۀ کښې په څۀ خبره خفگان كول ، د څۀ ارمان يا مقصد نه پوره کېدلو له کبله زړۀ ته درد رسېدل.

**تاوان** :- (تا +وا +نْ) [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : تاوانونه] (۱) تړون ، نقصان ، زيان (۲) حرجانه ، جرمانه ، پور (۳) جرم ، قصور .
خود کرده به څۀ تاوان له چانه غواړي
چې مې بل له خپله لاسه په سر اور شۀ حميد

**ـــــ اخستل**:- (اص) حرجانه اخستل ، جرمانه اخستل.

**ـــــ پورته كول**:- (اص ) زيان برداشت كول

**ـــــ غوښتل**:- (اص) جرمانه غوښتل.

**ـــــ كول**:- (اص) (۱) خپل زيان کول ، نقصان کول ، په تجارت کښې نقصان پورته كول (۲) د چا جائيداد يا فصل ته نقصان رسول.

**ـــــ كېدل**:- (اص) (۱) خپل زيان نقصان كېدل ، په تجارت کښې نقصان کېدل (۲) د چا جائيداد يا فصل ته نقصان رسېدل .
چې هاله پر خوشبوئي د گلو مست ؤ
د هجران غمونه واړه پرې تاوان شول خواجه محمد بنگش

**ـــــ منل**:- (اص) د نقصان او حرجانه ذمه اخستل.

**ـــــ موندل**:- (اص) نقصان موندل ، زيان موندل ، تاواني كېدل.

**ـــــ وركول**:- (اص) (۱) چاته نقصان رسول ، د چا مال او جائيداد نقصانول ، (۲) جرمانه يا حرجانه وركول ، د نقصان شوي څيز قيمت پرې كول.

**پرې تاوان كول** :- (اص ) (۱) څۀ واقعه يا نقصان په چا وراړول ، (۲)د څۀ نقصان جرمانه د چا نه اخستل.په چا باندې څۀ څيز تروټه كول . پرچتي كول.

**پرې تاوان كېدل** :- (اص) (۱) څۀ نقصان په چا وراړول ، (۲) د څۀ نقصان جرمانه د چانه اخستلے کېدل ، په چا باندې څۀ څيز تروټه كېدل ، پرې چتي كېدل .

**په تاوان خرڅول** :- (اص) څۀ څيز د اصلي بيعې نه په کم قيمت خرڅول ، د څۀ څيز په خرڅولو كښې نقصان پورته كول.

**تاوان جن** :- (تا + وا +نْ + جَ + نْ) [پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا : تاوان جنه ، ج : تاوان جنې) ] (۱) نقصاني ، تاواني ، زيان من (۲) عېب جن ، عېب ناک.

**تاوانول** :- (تا وا + نْ + وُ + لْ) [پ ، مص ، مت] (۱) نقصانول ، زيانول ، نقصان ور رسول ، (۲) خرڅول كول ، لگول (۳) ضائع كول.

**پرې تاوانول** :- (اص) څۀ څيز په چا تروټه كول ، پرې ورچتي كول ، پرې ور اړول ، وريه غاړې كول.

**تاوانونگ** :- (تا + وا + نَ + وَ + نْ + گ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ تاوانونه.

**تاوانونه** :- (تا + وا + نُ + و + نه) [پ ، حمص] تاوانونگ ، نقصانونه ، زيانونه .

**تاوانوونكے** :- (تا + وا +نْ + وُوْ +نْ + كے) [پ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : تاوانوونكي (مؤ : تاوانوونكې) ] (۱) نقصان کوونکے ، تاوان کوونکے (۲) تاوان يا نقصان رسوونکے .

**تاواني** :- (تا + وا + نيْ) [پ ، اس ، ص] (۱) نقصاني ، زيان من (۲) عېب جن ، عېب ناک (۳) هغه څوک چې تاوان کوي ، خرڅي، فضول خرڅ.

**ـــــ كول**:- (اص) نقصان ور رسول.زيانول.

**ـــــ كېدل**:- (اص) نقصاني كېدل ، زيانېدل ، تاوانېدل.

**تاوانېدل** :- (تا + وا + نې + دْ + لْ) [پ ، مص لا] تاواني كېدل ،

**پر تاوانېدل** :- (اص) څۀ څيز په چا ډنډ کېدل يا چتي کېدل ، پر غاړه كېدل.

**تاوانېدنگ** :- (تا + وا + نې + دَ +نْ + گ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ تاوانېدنه

**تاوانېدنه** :- (تا + وا + نې + دْ +نَه) [پ،حمص] تاوانېدنه ، نقصان كېدنه ، زيان كېدنه ، تاوانېدنگ.

**تاوانېدۀ** :- (تا +وا + نې + دۀ) [پ ، حمص] و ـــ تاوانېدنه

**تاوانېدونكے** :- (تا + وا + نې + دُو + نْ + كَے) [پ ، مف ،مذ ، وا ، ج : تاوانېدونکي (مؤ : تاوانېدونکې) ] (۱) نقصان کېدونکے ، زيانېدونکے (۲) نقصان رسېدونکے .

**تاؤ تاؤ** :- (تاؤ + تاؤ) [پ ، ص] (۱) غصه غصه (۲) تاؤ راتاؤ

**ـــــ كېدل**:- (اص) غصه غصه كېدل ، سوخت راسوخت كېدل

**تاوته** :- (تا + وَ + تَه) [پ ، حرف ، مخاطب) تاته

**تاوته** :- (تا + وُ + تَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : تاوتې] يو قسم ريشمي راخت يا ټوکے .

**تاؤخانه** :- (تا + ؤ + خا +] نه) [اف ، پ ، مؤ ] تاؤخونه.

**تاؤخونه** :- (تا+ؤ + خُوْ + نه) [اف ، پ (قاموس) اس ، مؤ] تاؤخانه

**تاؤدۀ** :- (تا + ؤ + دۀ) [پ ، ص ، ج ] گرم ، تود

**تاؤدۀ ساړۀ** :- (تا + ؤ+دۀ+ سا + ړَۀ) [پ ، ص] (۱) گرم او يخ ، تود او سوړ (۲) سختي او خوشحالي.

**ـــــ تېرول**:- (اص) تكليف او خوشحالي تېرول، ښې او بدې ورځې اړول.

**تاؤدۀ و ساړۀ** :- (تا + ؤ + دۀ + وُ + سا + ړۀ) [اف : پ (قاموس) اس] ساړۀ تاودۀ ، تور تاؤدۀ ، تاؤدې ، شگنه ، يو قسم اينگولے

**ـــــ كول**:- (اف) ساړۀ تاؤدۀ كول ، تاؤدې كول ، يو خاص قسم اينگولے جوړول

**تاودے** :- (تا+ ؤ + دَے) [اف : پ (قاموس) ص ،مذ] و ـــ تاؤدۀ و ساړۀ.

**تاؤ راتاؤ** :- (تاؤ + را + تاؤ) [پ ، ص] (۱) كوږ ووږ ، (۲) منجيله نغښتے.

**تاؤرنگون** :- (تا+ ؤ + ر+ نْ + گو + نْ) [پ، اس ، مذ] د بوډۍ تال ، سره كاسه

، قوس قزح ، شنه سره ، پیڼگنه۔

**تاوړے** :- (تا + وْ + ړَے) [پ (گن) اس ، مذ ، وا ، ج : تاوړي ] تمبړے ، ټاټکے ، د اوسپنې هغه گول شان ښانک چې لمدې خاورې پکښې ورلې راوړلې شي۔

**تاوز** :- (تا +وْ+ زْ) [اف : پ (قاموس) فا : طاؤس ، اس ،مذ ، وا ، ج: تاوزان ] تاوس ، مور ، یو ځنگلي مارغهٔ چې ښې ئې ډېرې ښکلې وي۔

**تاوس** :- (تا+ وْ+ سْ) [پ ، فا: طاؤس ، اس ،مذ ، وا ، ج : تاوسان] و- تاوز

**تاوکښل** :- (تا + وْ+ کَ + شْ یا کَ + خْ) [اف : پ (قاموس) اس ، ص، مذ ، (مؤ ، وا: تاوکښه ، ج : تاوکښې) ] تبه ختم کوونکے ، تبه راکښونکے ، تبه لرې کوونکے۔

**تاوکښـل** :- (تاؤ + کْ + شْ + لْ یا کْ +خْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت ] (۱) تبه ختمول ، تبه لرې کول (۲) زر راتلل۔

**تاوُن** :- (تا+ وُ + نْ) [اف : پ (قاموس) ع : طاعون ، اس، مذ ] د طاعون مرض ، یو قسم وبائي بیماري چې د بنیادم په څټ ، ترخ یا په پتون کښې دانه راوخېژي چې ډېر سخت سوے کوي او ددې مرض نه بنیادم په مشکله بچ کېږي۔

**تاوول** :- (تا+وْ+ وْ+ لْ) [پ ،مص ،مت ] تاؤ کول ، غښتل ، څرخ ورکول ،

**تاوونگ** :- (تا+ وْ+ نْ+ گْ) [اف : پ (قاموس) حمص ج و ـ تاوونه

**تاوونه** :- (تا + و + وْ + نه) [پ ، حمص] تاوونگ ، تاؤ کونه

**تاوونے** :- (تا+ وُوْ +نَے) [پ ،اس ، ص ، مذ ] تاؤن وهلے ، د طاعون په مرض گرفتار۔

**تاوُونکے** :- (تا +وْ+وُوْ+نْ+ کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ،ج: تاوُونکي ، ( مؤ : تاوُونکې) ] (۱) غښتونکے ، غړونکے ، (۲) څرخوونکے ، چکر ورکوُونکے ۔

**تاوه** :- (تا+وَه) [اف : پ (قاموس) اس ،مؤ ، وا ، ج : تاوې ] (۱) توه هغه پوله چې د اوبهٔ خور دپاره جوړولے شي (۲) د دوؤ پولو په مېنځ کښې لړه شان مزکه۔

**تاوے** :- (تا +وَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ناوي ] هغه آله چې پرې ته پرې تاؤ ورکولے شي۔

**تـاوې** :- (تـا + وې) [اف : پ (قـاموس) ع : تـابع ، ص ، مـذ ] حکم منـونکے ، فرمانبردار ۔

**ــــ کول**:- (اف) اص۔فرمانبردار کول ، حکم لاندې راوستل۔

**ــــ کېدل**:- (اف) اص۔حکم لاندې کېدل ، فرمانبردار کېدل۔

**تاوې** :- (تا+وې) [پ ، حرف مخفف ] تاویل ، تووې

**تاویتړې** :- (تا +وي +تْ +رَ + یَې) [پ (صو)اس ،مؤ] لوے هار یو قسم د زرو امېل چې د زرو ککوړې پکښې لگېدلي وي ۔تویتړې ، د زرو تعویذ ۔

**تاویتک** :- (تا + وِيْ + تَ +کْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج: تاویتکونه ] د سرو هغه تعویذ چې زنانه ئې د کالي په ډول اچوي

**تاویتک** :- (تا + وِيْ + تَ +کْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] مردار خور ، سخا سړے ، خیرن خیچن

**تـاویځې** :- (تـا + وي + دْزَ + یَې) [پ (ظفر) اس ، مؤ] د بـاتور پـه شـان تـوره سپینه حلاله مرغۍ۔

**تاوېـدل** :- (تـا+ وي + دْ + لْ) [پ، مـص لا (۱) تـاؤ خـوړل ، غښـتلے کېـدل (۲) څرخ خوړل ، تاؤ راتاوېدل۔

**پر تاوېدل** :- (اف) اص . (۱) په څهٔ څیز پاس چکر خوړل (۲) یو ځاے ته زیات تلل راتلل

**په تاوېدل** :- (اف) اص۔په چورلېدل او په تېزۍ څرخېدل

**تاوېدنگ** :- (تا + وي + دَ + نْ + گْ) [اف ، پ (قاموس) حمص ] و ـــ تاوېدنه۔

**تاوېدنه** :- (تا + وي + دْ + نه) [پ ، حمص] تاوېدنگ ، تاوېدهٔ ، چورلېدنه ، څرخېدنه۔

**تاوېدهٔ** :- (تا + وي + دهٔ) [پ ،حمص ] و ـــ تاوېدنه

**تاوېـــدونکے** :-(تـــا + وي + دُوْ + نْ + کَـــے) [پ ، اس ، فـــا ع ، مـــذ ، وا ، ج : تاوېدونکي ، (مؤ : تاوېدونکې) ] (۱) تاؤ خوړونکے ، چکر وهونکے ، تاوېدونے۔

**تاوېدونے** :- (تا+ وي + دُوْ + نَے) [پ ، اس ، ص ، مذ ،وا ، ج : تاوېدُوني (مؤ : تاوېدوني) ] و ـــ تاوېدونکے ۔

**تاویل** :-(تا + وِيْ + لْ) [ع ،س ،مذ] (۱) بیان ، شرح (۲) شرعي بهانه

**تائب** :-(تـا + ئِـ + بْ) [ع ، اس ، مـذ] توبـه کـوونکے ، د گناه نـه اوښـتونکے ، توبه گار

د ژوندون په هر نفس د ے<br>
هـر نـفـس اوسـي تـائب      حمید

**تائپي** :- (تائي + پي) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ] و ـــ تاپي

**تائید** :- (تا + یِيْ + دْ) [ع ، اس ، مذ ] مدت، حمایت ، مرسته ، طرفداري ،

**ــــ کول**:- (اص) مدت کول ، مرسته کول ، طرفداري کول۔

**ــــ کېدل**:- (اص) مدت کېدل ،مرسته کېدل، طرفداري کېدل

**تـایي** :- (تـا + یـيْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : تایانې] د پښـې بـدل پېزار

**تب** :- (تَ + بْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : تبونه] (۱) تریـاق ، هغه دوائي چې د زهرو اثر پرې ځي . زهر مُهره ، (۲) ټکور ۔

**تبا** :- (تْ + با) [پ ، فا : تباه ، ص] برباد

**ــــ کول**:- (اص) بربادول ، تباه کول ،

**ــــ کېدل**:- (اص) بربادېدل ، تباه کېدل۔

**تبا** :- (ت + با) [اف : پ (قاموس) کلمه] د تهٔ به مخفف

**تبـاخ** :- (تَ + بـا + خْ) [پ ، ع : طبـق ، اس ، مـذ ، وا ، ج : تباخونـه] تـال ، ښانک ، کنډول

**تبادلـه** :- (تَ + بـا + دْ + لَـه) [فـا ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : تبـادلې] (۱) بـدلي ، ادل بدل ، زمکه ، جائیداد یا څهٔ څیز د چا سره بدلول (۲) د یو ځاے نه بل ځاے ته تبدیلي۔

**تبار** :- (تَ + با + رْ) [ع ،اس ، مذ] خاندان ، خېل ، تبر ، کهول

**تباشیر** :- (تَ + با + شِيْ + رْ) [فا ،اس ، مذ ] یو قسم دوائي

**تباه** :- (تا + با + هْ) [فا ، ص] تبا ، برباد

**تباهي** :- (تَ + با + هِيْ) [فا ، اس ، مؤ ] (۱) بربادي (۲) ډوبه ، غرقه

**تبّت** :- (ت + بْ + بَ + تْ) [اس ، معرفـه ، مـذ] د هندوستان قطب اړخ تـه د همالیه په غرونو کښې پروت یو ملک دے چې خلق ئې د بُدھ مذهب منونکي دي۔

**تِبتے** :- (ت + بْ + تَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : تبتي ، تبتیان (مؤ: تبتۍ) ] د تبت سره تعلق لرونکے ، د تبت اوسېدونکے ۔

**تـبجن** :- (تَ + بْ + جْ + نْ) [پ ،ص ، مـذ (مـؤ ، وا: تبجنـه ، ج : تبجنـې) ] تبژن ، تبې نیولے ، بیمار ۔

**تبخ** :- (تْ + بَ + خْ) [اس ، مذ] تبک ، تبکے ، د خاروؤ یو مرض چې پښې ئې کار نهٔ کوي او په پوزو ئې گړنگ بهېږي ، کوراغ

**ــــ نیول**:- (اف) اص۔تبک نیول ، د تبک په مرض بیمارېدل

**تبخے** :- (تْ + بْ + خَے) [پ ،اس ، مذ ، وا ، ج : تبخي ] (۱) تبغنه (۲) ب ، خ

، د خاورو ورکوټې لوښې چې اینګولے پکښې خوړلے شي.

**تبخـی** :-(تْ + ب + خَ + یَـی) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] کـاغـی ،یـو قسم قارغهٔ

**تبخیـر** :- (تَ + بْ + خِيْ + رْ) [ع ، اس ، مـذ] بـړاس ، دا هغـه عمـل دے چې ددې پـه ذريعه مائعات د بړاس پـه شکل کښې بدلولے شي.

**تبدیل** :- (تَ + بْ + دِيْ + لْ) [ع ، اس ، مـذ (مؤ ،وا: تبديلـه ، ج: تبديلې] بدل شوے

**تبـدیلي** :- (تَ + بْ + دِيْ + لـيْ) [اُر ، اس ، مـؤ، وا ، ج : تبـديلۍ] بـدلي ، د ملازم د يو ځاے نه بل ځاے ته بدليدنه.

**تبـر** :- (تَ + بْ + رْ) [فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : تبـران ، تبرونـه] تبـرګے ، د اوسپنې هغه تېره شان آله چې لرګي پرې پرېکولے شي.

**تبر** :- (تْ + بْ + رْ) [اف : پ (قاموس) اس، مـذ] د زنانـاؤ پـه قميص کښې څنګ ته جيب ، تبرغالے.

**تبـر غـالے** :- (تْ + بْ + رْ + غـا + لَـے) [اف : پ (قـاموس) اس، مـذ ، وا ، ج : تبرغالي] دزنانـاؤ د څنګ جيب.

**تبرغـان** :- (تْ + بْ + ر + غـا + نْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) يو قسم شينکے چې ګلونـه کوي او د ښوروا دېګ تـه اچولي شـي (۲) يو قسـم مردار ځناور چې د څرمنې دپاره ئې خلق ښکار کوي.

**تبـرک** :- (تَ + بَ + رْ + رُ + کْ) [ع ، اس ، مـذ] خُـوړده ، د برکـت څيـز ، د بزرګانو يا ښو خلقو د يادګيرنې څيز.

**تبـرک** :- (تْ + بْ + رَ + کْ) [اف ، پ (قاموس) اس ، مذ) (۱) د ټوپک رخونه (۲) د ارهټ ولاړه ستن.

**تبرکنے** :- (تْ + بْ + رْ + کْ + ے) [اف : پ (قاموس) اس ، مـذ ، وا] ټپرکونے ، درې ګوټيزه ټُکره ، چې زنانه ئې دخپل ګرېوان سره ګنډي او اکثر ئې د جيب په ډول استعمالوي.

**تبرګے** :- (تَ + بَ + رْ + ګَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : تبرګي] وړوکے تبر.

**تبریـد** :- (تَ + بْ + رِيْ + دْ) [ع ، اس ، مـذ] يخـول ، سـړول ، پـه مصـنوعي طريقه کم نه کم درجه حرارت پيدا کول. ريفريجرېټر په دې اصول جوړ کړے شوے دے.

**تبریز** :- (تَ + بْ + رِيْ + زْ) [فا ، اس ، معرفه ، مذ] د ايران يو مشهور ښار. حضرت شمس تبريزؒ ته ددې کلي په مناسبت شمس تبريزي وائي.

**تبریـزي** :- (تَ + بْ + رِيْ + زِيْ) [فـا ، اس ، ص ، مـذ] تبريـز سـره تعلـق لرونکے ، د تبريز اوسېدونکے ،

**تبـړه** :- (تْ + بَ + ړه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : تبـړې] د کـانړي پلنه تبۍ ، پلنه تيږه ،لويه تږه.

**تبز** :- (تَ + بَ + زْ) [پ (ب،خ) اس ، مذ] نرم کانړے.

**تبـژن** :- (تَ + بْ + ژَ + نْ يا جَ + نْ) [پ ، ص ، مـذ ، مـؤ ، وا: تبژنـه ، ج : تبژنې] تبجن.

سـر هـوا لـه تـبژن هـسې د يـبـړي
د خپل ځان سره خولهٔ پټه سوال ځواب — خوشحال

**تبسم** :- (تَ + بَ + سْ + سُ + مْ) [ع، اس ، مذ] مُسکا ، موسکا ، پـه شونډو کښې خندا.

خاموشۍ ته د ستا غرونه حېرانېږي
تبـسم دې خـراج اخـلي له سپرلونه — طاهر کلاچوي

**تبصــره** :- (تَ + بْ + صِ +رَه) [ع ، اس ، مــؤ ، وا ، ج : تبصــرې] تنقيــد ، نظرثاني ، په څهٔ کتاب وغېره تنقيدي خبرې.

**تبک** :- (تَ + بَ + کْ) [پ ، اس ، مذ] وـــ تبخ

**تبکۍ** :- (تَ + بْ + کْ + يَۍ) د ماشومانو لوبه.

**تبکے** :- (تَ + بَ + کَے) [پ (ب، خ) اس ، مذ] وـــ تبخ

**تبګۍ** :- (تَ + بْ + ګْ + يَـۍ) [پ ، اس ، مـؤ] (۱) تبـه شـان ، معمـولي تبـه (۲) مرض ، وبا ،

**تبل** :- (تَ + بْ + لْ) [پ ، مص مت] (۱) تـب ورکـول ، ټکـورول ، پـه خـوږ يـا درد بدلي ځاے ګرم څيز د ټکور ورکولو دپاره اېښـودل. (۲) د عـلاج پـه ډول په اور کښې داوسپنې سُور شوي سيخ داغ ورکول.

**تبل** :- (تَ + بَ + لْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) وهم ، شک ويره ، ډار (۲) شرمندګي ، کچه کېدل.

که مې يار په يوه زخم ړدي بل زخـم
پـکار نـهٔ دي د طبيـب تـبل زمـا — حميد

**ـــ خوړل** :- (اف) اص. (۱) ويرېدل ، ډارېدل (۲) شرمېدل

**ـــ کول** :- (اف) اص. وهم او يره کول.

**تبلول** :- (تَ + بْ ـ لَ + وْ + لَ) [اف : پ (قاموس) مص مت] (۱) شرمول ، کچه کول (۲) يرول ، ډارول.

**تبلولے** :- (تَ + بْ + لَ + وْ + لَـے) [اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج: تبلولي ، (مؤ : تبلولې)] (۱) شرمنده کـړے ، شـرمولے ، کچـه کـړے ، (۲) يرولے ، ډار کړے.

**تبلونه** :- (تَ + بْ + لَ + وْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱) شرمونه ، کچه کونه (۲) يرونه ، ډارونه.

**تبلوونکے** :- (تَ + بْ + لَ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قـاموس) اس، فـا ع ، مـذ ، وا ، ج: تبلـوونکي (مـؤ : تبلـوونکې)] (۱) شـرموونکے کچـه کوونکے (۲) يروونکے ، ډاروونکے.

**تبلـه** :- (تَ + بْ + لَـه) پ ، ع: طبلـه ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : تبلې] تبلۍ دبلـه ، دبلے ، ورکوټې شان ډول.

**تبلۍ** :- (تَ + بْ + لَ + يَۍ) [اف ، پ (قـاموس) ع: طبلـه ، اس ، مـؤ] وـــ تبله.

**تبلے** :- (تَ + بْ + لَے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ،ج : تبلي (مـؤ : تبلې)] (۱) ټکـور کـړے ، ټکـور شـوے (۲) دردمـن ، زخمـي (۳) ځنـاور داغلـے شـوے

**تبلېدل** :- (تَ + بْ + لې + دْ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص لا] (۱) شـرمېدل ، کچه کېدل (۲) يرېدل ، ډارېدل.

**تبلېدنګ** :- (تَ + بْ + لې + دَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] وـــ تبلېدنه

**تبلېدنـه** :- (تَ + بْ + لې + دْ + نـه) [اف : پ (قـاموس) حمـص] (۱)شرمېدنه ، کچه کېدنه ، (۲) يرېدنه ، ډارېدنه ، تلبدنګ

**تبلیـغ** :- (تَ + بْ + لِيْ + غْ) [ع ، اس ، مـذ ، وا ، ج: تبليغونـه] (۱) رسـول ، وئيل ، (۲) د شرعي حکم خلقو ته رسول ، وعظ نصيحت.

**تبلیغي** :- (تَ + بْ + لِيْ + غِيْ) [اُر ، اس ، ص] (۱) وعظ نصيحت کوونکے ، (۲) د وعظ نصيحت سره تعلق لرونکے.

**تبنـۍ** :- (تُ + بْ + نْ + ړْ + يَـۍ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] د نانبـائي هغـه تخته چې پېړه پرې جوړولے شي.

**تبنـۍ** :- (تْ + بْ + نْ + ړْ + ی) [اف : پ (قـاموس) اس، مـؤ] تبـۍ ، د کـانړي پلنه تخته

**تبنکي** :- (تْ + ب + نْ + کِيْ) تينکي ، د دماغ پردې.

**تبنګ** :- (ت + بَ + نْ ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] وـ تبنه

**تبـور** :- (تَ + بُـوْ + رْ) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] بـاډې ، سينه بند ، هغـه

کپړه چې زنانه ئې سینې ته اچوي ، تپور

**تبوک** :- (تَ + بُو + کْ) [ ع ، اس ، معرفه ، مذ ] په عربستان کښې یو ځاے چېرته چې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم په ژوند کښې په کال ۹ هجري کښې کافرانو په جنګ کښې ماتې کړې وه .دا ځاے د شام او مدینې په لار کښې راځي.

**تبونکے** :- (تَ + بُو + نْ + کَے) [ اف : پ (قاموس) اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج : تبونکي (مؤ : تبونکې ) ] تبونے ، تبورکوونکے ، ټکوروونکے .

**تُبونے** :- (تَ + بُوْ + نَے) [ اف : پ (قاموس) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج: تبوني (مؤ : تبونې ) ] (۱) و ـــ تبونکے (۲) هغه څیز چې ټکور پرې ورکولے شي.

**تبه** :- (تَ + بَه) [ پ ، فا : تپ ، اس ،مؤ ، وا ، ج : تبې ] د بیمارۍ حرارت ، رنځورتیا .د تبې غټ غټ قسمونه دادي .د مني تبه، ستره تبه یا لویه تبه ، اوږده تبه ، توره تبه ، شبېره تبه یا موسمي تبه ، د دریمې تبه ، واریزه تبه.

یو د بـېـلـتـانـۀ رنـځـوري ګـرانـه ده کـه نـۀ وي
نور همه زحمت آسان دے که نس خوږي وي که تبه خوشحال

ـــ **پرې کېدل**:- (اص) میعادي تبه ختمېدل.

ـــ **تړل**:- (اص) د تبې بیمار ته دم شوي پیاز ، اوږده ، د زیارت ګیتې یا اوۀ ګنډې ورکړې شوي سپنسي وریه غاړه کول.

ـــ **راتلل**:- (اص) بیمارېدل ، بدن د رنځورتیا په وجه ګرمېدل ، حرارت کېدل

ـــ **زیاتېدل**:- (اص) تبه ختل ، تبه تېزېدل.

ـــ **شلېدل**:- (اص) تبه شوکېدل ، تبه ماتېدل ، تبه تلل.

ـــ **شوکېدل**:- (اص) و ـــ تبه شلېدل

ـــ **کتل**:- (اص) تبه معلومول .د بیمارۍ په وخت د تهرمامیټر په ذریعه حرارت معلومول.

ـــ **کوزېدل**:- (اص) تبه تلل

ـــ **ماتېدل**:- (اص) و ـــ تبه شلېدل.

**په تبه پربوتل** :- (اص) بیمارېدل.رنځورېدل.

**تبې اخستل** :- (اص) بیمارېدل ، د تبې راتلل ، د رنځورتیا په وجه بدن ګرمېدل ، تبې نیول.

**تبې رااخستل** :- (اص) د تبې په وجه بدن لړزېدل یا ډګېدل .

**تبې نیول** :- (اص) و ـــ تبې اخستل

**د تبې پرېښودل** :- (اص) تبه تلل ، تبه کوزېدل.

**تبۍ** :- (تَ + بَ + يَۍ) [ پ ، اس ، مؤ] د نرم کاڼي یا تړې نه جوړه تبغنه.

ټپه: تبۍ راواخلئ مخ راتور کړئ
د باچا لور وُم په طالب مئینه شومه!

ـــ **باندې کول**:- (اص) (۱) د کاڼي تبغنه باندې کول (۲) لوے مېلمستیا ته تیارېدل.

**زړۀ تـوره تبـۍ کېدل** :- (اص) (۱) زړۀ توربدل ، (۲) ډېر بې رحمه کېدل ، زړۀ سوے ختم کېدل.

**تبي** :- (تَ + بي) [ پ ، اس ، مذ] داغ ، د غوړو تبلو تپاکه

ـــ **کول**:- (اص) داغ ورکول ، تنکه کول.

ـــ **کېدل**:- (اص) داغ ورکولے ، تنکه کېدل.

**تبۍ توده** :- (تَ + بْ + يِيْ + تَو + ده) [ اف : پ (قاموس) اس، مؤ] ماشومانو په لوبه کښې چې یو هلک د هغې لوبې د ادابو نه خلاف لاړ شي نو وئیلے شي.

**تبزون** :- (تَ + بې + زُوْ + نْ) [ پ ، اس ، مذ] د تبې په حالت کښې په بیمار د خولې راوستو دپاره د ګرمې تبغنې براس ورکول.

ـــ **کول**:- (اص) د تبې په حالت کښې بیمار ته د تبغنې براس ورکول.

**تبۍ غار** :- (تَ + بْ + يَ + غا + رْ) [ اف : پ (قاموس) اس، مذ] د ماشومانو یوه لوبه چې یوه لویه ډنډه د دېوا په غار کښې ورکړي او په منډه ماشوم ورځي او د پښې په ګذار ئې راغورزوي.

**تبۍ کانے** :- (تَ + بَ + يَۍ + کا + نْ + ړَے) [ پ ، اس ، مذ] داغ یا د تپاکې کانے ، زنانه یو غونډے کانے په اور کښې ګرم کړي په څمڅه کښې لږ شان غوړي واچوي او دا تود کانے په هغه څمڅه کښې واچوي .د لږ ساعت نه پس د پخکړي ، اینګولي د کټوي یا دېګچې سر اوچت کړي دا څمڅه ورنه باسي.دغه شان ترکاري ته تنکه ورکړي.

**تـپ** :- (تَ + پْ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) ګڼه ګوڼه ، زیات خلق . (۲) تبـاه ، بربـاد ، (۳) داغ ، خـال ، چـاپ ، نخښـه (۴) ګرمــي تـاؤ (۵) ښکاري سپي ته په ښکار پسې د خلاصولو په وخت اواز (۲) تبه.

ـــ **رسېدل**:- (۱) تکلیف رسېدل ، (۲) احساس کېدل ، په تاؤ پوهېدل.

ـــ **کول**:- (اف) اص .(۱) ګڼه ګوڼه جوړول (۲) تباه کول (۳) په ښکاري سپي اواز کول (۴) ګرمي کول.

ـــ **کېدل**:- (اف) اص .(۱) ګڼه ګوڼه جوړېدل (۲) تباه کېدل (۳) په ښکاري سپي اواز کېدل (۴) ګرمي کېدل.

**تپا** :- (تَ + پا) [ اف : پ (قاموس) اس مؤ ، وا ، ج : تپاوې ] ناقلاري نُول ، اند ېښنمني.

**تپا** :- (تَ + پا) [ پ ، اس ، صو ] د تپ تپ اواز ، د ټپولو اواز .

**تپـاس** :- (تَ + پـا + س) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] (۱) لټـون ، تـلاش (۲) زیار ، کوښښ ، تکیف

ـــ **کول**:- (اف) اص.(۱) لټون کول ، تلاش کول و (۲) زیار کول کوښښ کول

**تپـاک** :- (تَ + پـا + ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مــذ] (۱) حــرص ، لالــچ (۲) ناقلاري ، لېوالتوب.

ـــ **اخیستل**:- (اف) اص (۱) تپاک وهل ، لالچ اخستل (۲) بې قراره کېدل ، ناقلاره کېدل ، څۀ څیز ته زیاته مینه پېل کېدل.

ـــ **وهل**:- (اف) اص.و ـــ تپاک اخیستل.

**تپاک** :- (تَ + پا + کْ) [ فا ، اس ، مذ] خاطر مدار ، عزت.

**تپال** :- (تَ + پا + لْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د لمدو خټو یو چم چې په دېوال تپلے شي.

**تپانچه** :- (تَ + پا + نْ + چَه) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تپانچې] تماچه پستول ، تپخچه ، تموچه.

**تپانـد** :- (تَ + پـا + نْ + دْ) [ اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ (مـؤ ، وا: تپانـده ، ج : تپاندې ) ] ناقلاره و پرېشانه.

**تپانـده** :- (تَ + پـا + نْ + ده) [ اف : پ (قـاموس) اس ،مـؤ ، وا ، ج: تپانـدې] ګرماله ، هغه اله چې د خټو لبو پرې کولے شي.خټ ماله ، خټ مخه ، خټ موښے ، تپندے.

ـــ **کول**:- (اف) اص.په ګرماله لبو کول.

ـــ **کېدل**:- (اف) اص.په ګرماله لبو کېدل.

**تپاپے** :- (تَ + پا + پَے) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : تپاپي ] سوباړے ډېلۍ ، هغه لرګے چې جامې پرې وینځلے شي.

**تپائي** :- (تَ + پا + يِيْ) [ اُر ، اس ، مؤ] ورکوټے شان مېز کوټے چې اکثر به ئې درې پښې وي.خو نن صبا د څلورو پښو رواج دے.

**تـپ تـپ** :- (تَ + پْ + تَ + پْ) [ پ ، اس صـو ، مـذ] سپي تـه ښکار تـه د ورپرېښودو په وخت وئیلے شي.

**ـــــ کول**:- (اص) سپي ته ښکار ته د پرېښودو په وخت اواز کول

**تپ تور** :- (تَ + پْ + تو + رْ) [پ (ب، خ) اس ، ص ، مذ] هغه څوک چې په سترګو هېڅ نهٔ ويني ، ړوند کوکړے.

**ـــــ کېدل**:- (اص) (۱) په سترګو ړندېدل ، (۲) ځان په ځهٔ نهٔ پوهول

**تپجن** :- (تَ + پْ + جَ + نْ) [پ ، اس ، ص ، مذ] تبجن ، تبژن ، په تبه ، بيمار

**تپر کونے** :- (تَ + پَ + رْ + کُوْ + نَے) [پ (ب، خ) اس ، مذ ، وا ، ج: تپرکوني ] و ـــ تبرکنے.

**تپړا** :- (تَ + پَ + ړا) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] د لرګي هغه تپړے چې کُلالان د خاورو لوښي پرې جوړوي.تپنا.

**تپړان** :- (تَ + پْ + ړا + نْ) [پ (سو) اس ، ص ، مذ] چت پوزے ، پلن پوزے .هغه څوک چې پوزه ئې پلنه اوچته وي.

**تپسته** :- (تَ + پَ + سْ + تَه) [پ (آفر) کلمه] پسته ، بيا ، روستو

**تپش** :- (تَ + پَ + شْ) [فا ، اس ، مذ] حرارت ، تاؤ ، ګرمي ، تمپرېچر.

**تپ شوے** :- (تَ + پْ + شْ + وے) [پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: تپ شوي ، مؤ: تپ شوے] (۱) تباه شوے ، برباد شوے ، هلاک شوے (۲) ښکار ته ورخلاص شوے سپے.

**تپل** :- (تْ + پْ + لْ) [پ ، مص ، مت] (۱) ختمه په دېوال ويشتل (۲) خاوره د پخڅې په ډول لاندې باندې کښېښودل (۳) څهٔ خبره په چا پورې تړل (۴) په غاړه کول ، په ذمه لګول.

**پرې تپل** :- (اص) (۱) ختمه په دېوال ويشتل (۲) څهٔ خبره په چا پورې خامخا تړل ، څوک بې قصوره بدناموِل.ورتپل

**په چا تور تپل** :- (اص) په چا تور پورې کول ، په چا الزام لګول.

**د چا په سر ورتپل** :- (اص) چاته په غاړه کول.

**غل تپل** :- (اص) دروغ او عبث خبرې کول.

**ورتپل** :- (اص) و ـــ پرې تپل

**تپل** :- (تَ + پَ + لْ) [پ (ظفر) اس ، ص ، مذ] هغه څوک چې مخ ئې د غټو تنکو يا نونيو په وجه داغ داغ وي.تپل مخے ، تپلے برګ مخے.

**تپل مخے** :- (تَ + پَ + لْ + مْ + خَے) [پ (سو) اس ص ، مذ] تپلے هغه څوک چې مخ د غټو دانو په وجه داغ داغ وي.

**تپلے** :- (تْ + پَ + لَے) [پ ، مف ، مذ ،وا ، ج: تپلي (مؤ: تپلې)] (۱) ختمه په دېوال پورې ويشتلے (۲) څهٔ شيز د يو بل د پاسه په ترتيب ايښودے شوے (۳) ب ، خ.څورب ، مزے ، تيار ، مضبوط.

**تپند** :- (تْ + پَ + نْ + دْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ: تپنده)] حرصناک ، لالچي ، اروا وړے.

**تپتپنے** :- (تَ + پْ + تْ + پَ + نَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، ج: تپتپني ] د لرګي نه جوړه آله چې د چرچنو ښکار پرې کولے شي.

**تپندے** :- (تْ + پَ + نْ + دَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تپندي ] و ـــ تپانده.

**تپنګ** :- (تْ + پَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــ تپنه

**تپنه** :- (تْ + پْ + نَه) [پ ، حمص ] (۱) ختې په دېوال ويشتنه ، (۲) څهٔ قصه په چا پورې تړنه.

**تپن** :- (تْ + پْ + نِ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] لويه هواره ګټه

**تپنا** :- (تْ + پْ + نا) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــ تپړا

**تپور** :- (تْ + پُو + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــ تبور

**تپوړې** :- (تْ + پو + ړې) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تپوړي ] د زنانهٔ د قميص ګرېوان چې د ريښمو کشيدې پرې جوړې وي.

**تپوس** :- (تْ + پو + سْ) [پ ، ع: تفحص ، اس ، مذ ، وا ، ج: تپوسونه] (۱) پوښتنه ، د سوال جواب غوښتنه ، (۲) د بيمار پوښتنه ، بيمار پرسي (۳) حال احوال معلومول .

قريشي همدغه مېکده ده نور تپوس ئې مه کړه
چېرته محفل کښې چې ساغر او هم مينا اووينې

قريشي يار مې ايله اوس تپوس له راغے
چې وانهٔ مې شو زرغون په مزار شين شين — مطيع الله

لرورشه د مينو د کاروان اوکړه تپوس
چې لاره کښې پراتهٔ وروئې سکېږي حوصلې — مطيع الله قريشي

**ـــــ کول**:- (اص) (۱) د سوال جواب غوښتل (۲) د بيمار پوښتنه کول (۳) حال احوال معلومول.

**تپوسه** :- (تْ + پو + سه) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ] مسئله ، د تپوس کولو څهٔ معامله.

**تپول** :- (تْ + پْ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص ، مت] بې قراره کول ، ناقلاره کول، بې ارامه کول.

**تپول** :- (تْ + پْ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] (۱) بېخي تباه کول (۲) ښکاري سپے په ښکار پسې غار ته ننه ويستل.

**تپول** :- (ت + پَ + وْ + لْ) [پ (ب، خ) مص مت] (۱) تپول ، تپکي ورکول ، ماشوم د اودهٔ کولو دپاره رو رو په لاس تپول (۲) رو رو لاس يا پښې وهل ، اکثر د کمزورۍ يا ړوند والي په وخت کښې بنيادم رو رو تپربرې.دې ته پښې تپول وائي.

**تپونکے** :- (تَ + پُو + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ، ج: تپونکي ، (مؤ: تپونکې] ختمه په دېوال ويشتونکے ، چيکړ لګوونکے ، د لښو دپاره چيکړ په دېوال ويشتونکے.

**تپونګ** :- (تَ + پْ + وَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص ]و ـــــ تَپونه.

**تپونه** :- (تْ + پْ + وْ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص ] ناقلاره کونه ، بې ارامه کونه.

**تپونه** :- (تْ + پْ + وْ + نه) [اف: پ (قاموس) حمص] (۱) تپونګ بېخي تباه کونه (۲) ښکاري سپے په ښکار پسې غار ته ننه ايستنه.

**تپونه** :- (تْ + پَ + وْ + نه) [پ (ب، خ) حمص] (۱) تپونه ، ماشوم ته د اودهٔ کولو دپاره رو رو تپکي ورکونه (۲) د کمزورۍ يا ړوندوالي په وجه رو رو پښې اوچتونه ، تپربدنه.

**تپوُونکے** :- (تْ + پ+ وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس ، فاع مذ ، وا ، ج: تپوُونکي (مؤ: تپوُونکې) ] ناقلاره کوونکے ، بې ارامه کوونکے.

**تپوُونکے** :- (تَ + پْ + وُوْ + نْ + کے) [اف : پ (قاموس) اس، فاع مذ ، وا ، ج: تپوونکي (مؤ: تپوُونکې)] (۱) بېخي تباه کوونکے (۲) ښکاري سپے په ښکار پسې غار ته ننه ايستونکے.

**تپوونکے** :- (تَ + پَ + وُوْ + نْ + کَے) [پ (ب، خ) اس فا ع ، مذ ، وا ، ج: تپوونکي (مؤ: تپوونکې) ] (۱) ماشوم ته د اودهٔ کولو دپاره رو رو تپکي ورکوونکے ، تپوونکے (۲) د کمزورۍ يا ړوند والي په وجه رو رو پښې اوچتوونکے ، تپربدونکے.

**تپه** :- (ت + پَه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تپې] (۱) قبيله ، خېل ، پښه ، ګوند ، (۲) د ملک يوه حصه ، علاقه ، ډله.

**تپې تپې** :- (اص) (۱) قبيلې قبيلې ، ګوند ګوند ، خېل خېل (۲) ډلې ډلې ، ډېر زيات.

**تپه تيارهٔ** :- (تْ + په + ت + يا + رهٔ) [پ ، اس ، ص ، مؤ] توره تيارهٔ ډېره تيارهٔ ، تورتم.

**ـــــ کېدل**:- (اص) توره تيارهٔ کېدل ، ډېره تيارهٔ کېدل ، تورتم جوړېدل.

**تپے** :- (تَ + پَے) [پ (ظفر) اس ، ص] داغ داغ ، د داغونو ډک

**تپي تپي مخ** :- (ظفر) اص.د داغونو نه ډک مخ.

**تپې تيري** :- (تَ + پې = تپ + رې) [پ (وز) اس ، ص ، مؤ ، ج] تپې توري ، د ټکي برګي.

**تپېدل** :- (ت + پې + دَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] بې قراره کېدل ، ناقلاره کېدل، بې ارامه کېدل.

**تپېدل** :- (تَ + پې + دَ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص لا] (۱) بېخي تباه کېدل ، (۲) د ښکاري سپي په ښکار پسې غار ته ننه وتل

**تپېدل** :- (تَ + پې + دَ + لْ) [پ (ب،خ) مص لا] تپېدل ، تپکي ورکولے کېدل ، ماشوم د اودهٔ کولو دپاره رو رو په لاس تپولے کېدل ، (۲) رو رو لاس يا پښې وهلے کېدل ، د کمزورئ يا ړوندوالي په وجه لاس پښې تپول.

**تپېدنګ** :- (تَ + پې + دَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــــ تپېدنه.

**تپېدنه** :- (تَ + پې + دَ + نَه) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱) بېخي تباه کېدنه (۲) د ښکاري سپي ښکار پسې غار ته ننوتنه.

**تپېدنه** :- (تَ + پې + دَ + نه) [پ (ب،خ) حمص] (۱) تپېدنه ، تپکي ورکولے کېدنه ، ماشوم د اودهٔ کولو دپاره په لاس رو رو تپونه (۲) رو رو لاس يا پښې وهنه ، د کمزورئ يا ړوندوالي په وجه لاس پښې تپونه ، تپرېدنه.

**تپېدُونکے** :- (تَ + پې + دُوْ + نْ + کے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ وا ، ج : تپېدونکي (مؤ : تپېدونکې) ] ناقلاره کېدونکے ، بې ارامه کېدونکے ، بې قراره کېدونکے.

**تپېدُونکے** :- (تَ + پې + دُوْ + نْ + کے) [اف : پ (قاموس) مف ، مذ وا ، ج : تپېدونکي (مؤ : تپېدونکې) ] تباه کېدونکے ، برباد ېدونکے.

**تپېدُونکے** :- (تَ + پې + دُوْ + نْ + کے) [پ (ب، خ) مف ، مذ ، وا ، ج : تپېدونکي (مؤ: تپېدونکې) ] (۱) تپېدونکے ، تپکي ورکولے کېدونکے (۲) رو رو لاس پښې وهونکے ، د کمزورئ يا ړوند والي په وجه تپرېدونکے.

**تپېرے** :- (تَ + پې + رَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : تپېري] کچه خښتې جوړوونکے.

**تپېړه** :- (تَ + پې + ړه) [اف : پ (قاموس) ه : تهپېړ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تپېړې] څپېړه ، چاپېړه ، تاپېړه.

**تت** :- (تَ + تْ) [پ، ص ، مؤ (مؤ ، وا ، تته ، ج : تتې) ] (۱) کم روڼ چې روښانه نهٔ وي .(۲) کمزورے ، ورو ، ترتړے ، (۳) خفه ، ظهير ، غمجن ، بې طبعې.

د بـاطن په سترګو ګوره هغه مخ ته

ظاهـري نظر د نمر په لمبدو تت دے خوشحال

د مهجور د سوال ځواب څهٔ له څوک ويار کا

ولـې شـې د مـرګـې حـال خـبـرې تـتې حميد

**ـــــ کېدل**:- (اص) (۱) رڼا کمېدل ، نمر په پرېوتو کېدل ، د نمر ګرمي کمېدل (۲) خفه کېدل ، بې طبعې کېدل ، غمجنېدل.

**تـت** :- (ت + ت) [اف : پ (قامـوس) ص ، مـذ (مـؤ ، وا: تتـه ، ج: تتـې)] (۱) جُخت ، پېوست ، (۲) ټينګ (۳) ګُور ، ګڼ سورے (۴) کم روڼ.

**ـــــ کول**:- (اف) اص.(۱) جُختول ، پېوست کول (۲) ټينګول.

**تترے** :- (تَ + تَ + رَے) [اف : پ (قامـوس) اس ، مذ ، وا ، ج: تتري ] يو قسم سپين کاڼے.

**تتړ** :- (تَ + تَ + ړْ) [پ ، ص ، مذ ] ککړ ، لړلے.

**تُترے** :- (تُ + تَ + رَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : تُترې (مؤ: تُترۍ] ترټړے ، چاړا ، هغه څوک چې ژبه ئې نښلي.

چې دا هسې سپين سپېڅلے نصيحت کا

مـه کـړه خدايه د حـمـيد ژبـه تترے

**تـت لـک** :- (تْ + تْ + لَ + کْ) [پ (بلـو) اس ، مـذ ، وا] تلتـک ، بړسـتن ، شيرک ، کنځڼ.

**تتلے** :- (تْ + تْ + لَے) [اف: پ (قاموس) مذ ] و ـــ تلولے.

**تتمه** :- (تَ + ت + مْ + مَه) [ع ، اس ، مؤ ] (۱) بقايا ، بـچ شـوے (۲) ضميمه ، د کتاب هغه زياته حصه چې روستو ورسره لګېدلې وي.

**تتوالے** :- (تْ + تْ + وا + لَے) [پ ، ص ، مذ] کم روڼتيا ، کم روښانوالے ، کم نُوري

**تتوالے** :- (تْ + تْ + وا + لَے) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] (۱) ضــــخامت ، غټوالے ، جُختول.

**تتول** :- (تْ + تْ + لْ) [پ ، مص مت] (۱) رڼا کمول ، بتۍ ټيټول (۲) خفه کول.

**تتول** :- (تْ + تْ + وْ + لْ) [اف : پ (قاموس) مص مت] (۱) جختول پېوستول (۲) ټينګول (۳) ګورول (۴) رڼا کمول.

**تتونګ** :- (تْ + ت + وَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص ] و ـــــ تتونه.

**تتونه** :- (تْ + تْ + وْ + نـه) [اف : پ (قـاموس) حمـص] تتونـګ ، جُختونـه ، پېوست کونه ، (۲) ټينګونه ، (۳) ګورونه (۴) رڼا کمونه.

**تتونه** :- (تْ + تْ + و + نه) [پ ، حمص] (۱) رڼا کمونه ، بتۍ ټيټونه (۲) خفه کونه ، بې طبعې کونه ، ظهيرونه.

**تتوونکے** :- (تْ + تْ + وُوْ + نْ + کَے) [پ ، اس ، فا ع ، مذ ، وا ج : تتوونکي (مؤ : تتوونکې) ] (۱) رڼا کموونکے ، بتۍ ټيټوونکے (۲) خفه کوونکے ، بې طبعې کوونکے ، ظهيروونکے.

**تتوونکے** :- (تْ + تْ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس فا ع مذ ، وا ، ج : تتوونکي (مؤ : تتوونکې) ] (۱) جُختوونکے ، پېوست کوونکے (۲) ګڼه ګوره جوړوونکے (۳) ټينګوونکے ، (۴) رڼا کموونکے.

**تتوه** :- (ت + ت + وه) [اف : پ (قـاموس) اس ، مؤ ، ج : تتوې] کُورکـوړۍ ، سرکونځوړه ،

**تته** :- (ت + تَه) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] تترې ، ترتړے ، هغه څوک چې ژبه ئې ښخښړې ، چاړا.

**ـــــ تته کول**:- (اص) په ترتړۍ ژبه خبرې کول ، د ناز او نخرې نه خبرې نيمې نيمې کول.

عاشقان دې په سرو شونډو مبتلا شول

چـې لـه نـازه ورتـه کـړې تـهٔ تته تته خواجه محمد بنګش

**تته** :- (ت + تَه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تتې] کم نوره ، کم روښانه هغه ډيوه يا بتۍ چې رڼا ئې کمه کړے شوې وي.

**تتې سترګې** :- (اص) چُوينې سترګې ، چوچۍ سترګې ، هغه سترګې چې نظر په کښې کم شوے وي.

**تته** :- (ت + تَه) [پ (سو) اس ، مؤ] د ماشومانو يوه لوبه چې د پړو يا پرورې په زړو چپلو باندې کولے شي.

**تتۍ** :- (ت + ت + يَی) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ] (۱) د اوبن سينه (۲) د لرګي لويه پياله يا کاسه چې په کلو کښې لسي يا غوړي پکښې خورلے شي (۳) په غرهٔ کښې د اوبو ګړۍ.

**ـــــ به مزګه بورې موښوول** :- (اف) مح .د څهٔ څيز په ارمان کښې نولېدل ، د څهٔ څيز د حاصلولو زيات خواهش لرل.

**تر تتۍ لاندې کول** :- (اف) اص ، (۱) د چا نه څهٔ څيز په زور قابول کول (۲) د سينې لاندې کول ، تر سينې لاندې منبل ، (۳) څوک بنهٔ وهل ډبول.

نـن د واعـظ خـبرې کـېف راولي

ژبه تتی ستړګې ئې سرې ښکاري حمزه شنواري

**تتی** :- (ت + تَ + ی) [پ (شن) اص ، ص ، مـؤ] ترټړی ، چاړا ، نیمه ژبه.

**تتي** :- (ت + تِـيْ) [اف : پ (قـاموس) ص ، مـؤ ، ج] (۱) ګڼـه ، جمـع مجمـع ، (۲) کم نظره سترګې.

**تتي** :- (ت + تَـيْ) [پ ، اس، مؤ ، وا] اینډه ، کُونلي ، کونۍ ، د دو یوه لوبـه چې یو کس ورته منډه کړي او دوه کسان ئې رانیسي.

**تتېدل** :- (ت + تې + د + لْ) [پ ، مص لا] (۱) رڼالګېـدل ، بتـی کمېـدل (۲) ترټرے کېدل (۳) خفه کېدل ، بې طبعې کېدل ، د مخ رنګ خړ کېدل.

**تتېدل** :- (تْ + تې + دْ + لْ) [اف : پ (قـاموس) مـص لا] (۱) جختېـدل پېوست کېدل (۲) ګڼه ګوڼه جوړېدل (۳) ټینګېدل (۴) رڼا کمېدل.

**تتېدنګ** :- (تْ + تې + دَ + نْ + ګْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و ـــ تتېدنه.

**تتېدنـه** :- (تْ + تې + دْ + نـه) [پ ، حمـص] (۱) تتېـدهٔ ، رڼـا کمېدنـه (۲) خفـه کېدنه ، بې طبعې کېدنه. د مخ رنګ خړېدنه.

**تتېدنه** :- (تْ + تې + دْ + نه) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱) تتېدنګ ، تتېـدهٔ ، جختېدنه ، پېوست کېدنه (۲) ګڼه ګوڼه جوړېدنه (۳) رڼا کمېدنه.

**تتېـدونکے** :- (ت + تـې + دُوْ + نْ + کـے) [اف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج : تتېـدونکي (مؤ : تتېدونکې)] (۱) جختېدونکے ، پېوست کېدونکـے (۲) ګڼ ګوڼ کېدونکے (۳) ټینګېدونکے (۴) بې نوره کېدونکے.

**تتېـدونکے** :- (تْ + تې + دُوْ + نْ + کـے) [پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : تتېـدونکي ، مؤ : تتېدونکې)] (۱) بې نوره کېدونکے (۲) خفه کېـدونکے ، بې طبعې کېدونکے ، مخ خړېدونکے.

**تتېدهٔ** :- (تْ + تې + دهٔ) [پ ، حمص] و ـــ تتېدنه

**تجـارت** :- (ت + جـا + رَ + تْ) [ع ، اس ، مـذ ، وا ، ج : تجارتونـه] سـوداګري ، وېپار ، کاَروبار.

**تجارتي** :- (ت + جا + رَ + تِيْ) [پ، اس ،ص] تجارت سره تعلق لـرونکے ، د سوداګرۍ د ونج وېپار کاروباري.

**تجارتي هواګانې** :- (تجارتي + هَ + وا + ګا + نې) [پ ، تر ، اس، مؤ ج] دا هغـه سمندري هواګـانې دي چې پـه یـو خـاص موسـم کښـې پـه خـاص طـرف چلېږي.

**تجاوز** :- (تَ + جا + وُ + زْ) [ع ، اس ، مذ] د حد نه وتل ، زیاتے

**تجاهـل** :- (تَ + جـا + هُ + لْ) [ع ، اس ، مـذ] (۱) ځـان ناجانـه یـا ناپوهـه کـول (۲) په څهٔ څیز سترګې پټول.

**تجاهل عارفانه** :- (تجاهل + عا + رِ + فا + نه) [فا تر ، اس ، مذ] د معلوم څیـز یا واقعې نه ځان ناخبره ظاهرول.

**تجربـه** :- (تَ + جْ + رِ + بَـه) [ع ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : تجربـې] (۱) ازمېښـت (۲) دلیل ، ثبوت (۳) د سائنس عمل (۴) پوهه ، زده کړه.

د هجران په تجربه کښې

د مـرزا کلام موزون شه انصاري

**تجربه کار** :- (تجربـه + کـا + رْ) [فا ، اس ، ص، مذ، وا ، ج : تجربـه کاران (مؤ ، وا : تجربه کاره ، ج : تجربه کارې)] پوهـه ، هوښـیار ، واقف کار ، د تجربـې خاوند

**تجربه کاري** :- (تجربه + کا + رِيْ) [فا ، اس ، مؤ] واقفیت ، پوهه

**تجزیـه** :- (تَ + جْ + زِ + يَـه) [ع ، اس ، مـؤ ، وا ، ج : تجزیې] (۱) بېلونـه ، جـدا کونه (۲) د څهٔ فقرې صرفي نحوي ترکیب کونـه (۳) د سائنس پـه عمـل د څهٔ څیز اجزا معلومونه.

**تجسس** :- (تَ + جَ + سْ + سُ + سْ) [ع ، اس ، مذ] تلاش ، لټون ، تحقیق.

**تجګي** :- (تَ + جْ + ګِيْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] دُوبچن اُوړهٔ

**تجلا** :- (تَ + جَ + لْ + لا) [ع ، اس ، مؤ] رڼا ، نُور ، تجلي.

**تجلي** :- (تَ + جَ + لْ + لِيْ) [ع ، اس، مؤ] و ـــ تجلا.

لکه ذات په هر صفات کښې تجلي کا

له عارفه به په کوم حجاب مستور شي مرزا انصاري

**تجلي** :- (ت + جْ + لِيْ) [اف : پ (قـاموس) ص] د پخې او رنګ کړې شـوې خرمنې نه د ګونځې ایسـتلو دپاره څلور پنځه کسـان ئې ونیسي او هر څوک ئې خپل طرف ته راکاږي. دې عمل ته تجلي وائي.

**ـــ کول** :- (اف) اص. د پخې او رنګ کړې خرمنې نه ګونځې یا کسوتونه ایستل

**تجمــل** :- (تَ + جْ + مُ + مُ + لْ) [ع ، اس ، ص ، مــذ] شــان شــوکت ، زېــب زینت ، ښکلا.

دا د چـا تـجـمل څېرې ګرېوان دي

د پـښتو ادب سحر خنده افشان دي حمزه شنواري

**تجنیس** :- (تَ + جْ + نِيْ + سْ) [ع ، اس ، مذ] (۱) یو جنس کېدل (۲) د شعر و شاعرۍ اصطلاح. د بدیع د علم په اصطلاح کښې د دوؤ ټکو تلفظ یـو کېدل او چې معنې ئې جدا جدا وي.

دُرګـوهر بـه د تـجنیس وي چا پیلي

وي کُوز کړي به ئې ستوري له آسمانه طاهر کلاچوي

**ـــ تام** :- (اص) هغه هم وزنـه او یـو شان الفـاظ چې معنې ئې بدلې وي.

**ـــ محرف** :- (اص) چې دوه لفظونه په شکل کښې د یو شان وي. د حرفونو قسم او ترتیب ئې هم یو وي خو په حرکاتو او سکناتو کښې ئې فرق وي.

**ـــ مرکب** :- (اص) چې دواړه لفظونه په شکل کښې یو شان وي. د حرفونو تعداد او ترکیب ئې هم برابر وي. حرکات سکنات ئې هم یو شان وي خو یو لفظ مفرد وي او یو مرکب.

**ـــ مضارع** :- (اص) چې دوه لفظونه سره هم شکله ، هم وزنه وي. تعداد کښې هم برابر وي. حرکات سکنات ئې هم یـو شان وي خو یـو حرف پکښې د بل نه بدل وي.

**ـــ نـاقص** :- (اص) دوه لفظونـه پـه شـکل کښـې یـو شـان وي. حرکـات او سکنات ئې هم یو شان وي. په قسم هم یو وي خو د یو ټکي په اول یا اخر کښې یو لفظ زیات وي لکه : هارونه ، پرهارونه.

**تجــوري** :- (تَ + جــو + رِيْ) [ه ، اس ، وا ، ج : تجــورۍ] [ه ، اس ،وا ، ج : تجورۍ] ګله و هغه صندوق یـا المـارۍ چې مالدار خلق پیسې پکښې کښېږدي.

**تجوړي** :- (تَ + جو + ړِيْ) [پ ، اس ، معرفه] د بنو په ضلع کښې د ببټنو د قبیلې یو کلے.

**تجـویز** :- (تَ + جْ + وِيْ + زْ) [ع ، اس ، مـذ ، وا ، ج : تجویزونـه ، تجویزینـه] (۱) رایې ، تدبیر ، (۲) فېصله (۳) غور ، فکر ، سوچ (۴) انتظام ، بندوبست.

**تجهیز** :- (تَ + جْ + هِيْ + زْ) [ع ، اس ، مذ] (۱) تیـارول ، برابـرول (۲) مـړے د ښخولو دپاره تیارول.

**تجهیـز و تکفیـن** :- (تجهیـز + وَ + تَ + کْ + فِيْ + نْ) [ع ، اس ، مـذ] د مړي د ښخولو او د کفن دفن بندوبست.

**تځنډ** :- (تْ + دزَ + نْ + ډْ) [پ ، اس ، مذ] ترځنډه پورې، تر ډېره وخته.

**تچ** :- (ت + چْ) [پ ، اس ، مذ] وا ، ج : تچُونه] تیکه ، تکه ، د تُورې یا چړې خول.

**تچ** :- (تَ + چْ) [پ ، اس ، صو ، مذ] د پرېوتو اواز.

او شـریـر کـبر بدل په کهتري کړه

د غرور تُوره دې کښې باسه په تچه مرزا انصاري

**تچه** :- (تَ + چه) [ پ ، اس ، صو ] کچے ، چچه ، اچه ، د بزې د شړلو آواز۔

**تحت** :- (تَ + حْ + تْ) [ ع، اس ، مذ ] (۱) لاندې حصه (۲) قبضه ، اختیار (۲) لاندې ، کوزه ، کښته۔

**تحت الثرى** :- (تَ + حْ + تُ +ثْ + ثَ + را) [ ع ، ص ] تاترین ، ډېر کښته ، زیات لاندې۔

پـه صـورت ئې لـګي او له خپله تنه
چې ظالم ځي لکه برق تحت الثرىٰ ته — کاظم خان شیدا

**تحتُ الارض** :- (تَ + حْ + تُ + لْ + اَ + رْ + ضْ) [ ع ، ص ] د مزکې د تولو نه لاندینۍ حصه۔ دا حصه د اوسپنې او د نکلو نه جوړه وي

**تحت اللفظ** :- (تَ + حْ + تَ + لْ + لَ + فَ + ظْ) [ ع ، ص ] (۱) ټکي په ټکي ، حرف په حرف (۲) بغیر ترنم غزل وئیل۔

**تحریـر** :- (تَ + حْ + رِيْ + رْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : تحریرونه ] (۱) لیک ، لیکل ، خط (۲) رسید ، قباله ، (۳) عبارت ، د مضمون لیکلو طریقه۔

لـه خـناسـه خـاطـر ژغـوره
د خدا ے یاد باندې تحریر کا — مرزا انصاري

**تحریري** :- (تَ + حْ + رِيْ + رِيْ) [ ع ، ص ] لیکلے شوے۔

**تحریک** :- (تَ + حْ + رِيْ + کْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : تحریکونه] (۱) حرکت ورکول ، خوځول (۲) ترغیب ورکول ، لمسول ، (۳) څهٔ خبره شروع کول ، ډله جوړول (۴) کوښښ ، سعي

ـــــ **اعتماد** :- (اص) په پارلیماني طرز حکومت کښې د حکومت په پالیسۍ او کار تائید او اعتماد کول۔

ـــــ **التواء** :- (اص) د قانون ساز ایوان یا انتظامي مجلس په څهٔ مسئله د بحث په دوران کښې د یو غړي دا مطالبه چې دا بحث دې د څهٔ وخت دپاره روستو کړے شي۔

ـــــ **امداد باهمي** :- (اص) هغه ډله یا انجمن چې زمیندارو او عوامو ته په کښې منافع قرض روپۍ ورکوي۔

**تحسین** :- (تَ + حْ + سِيْ + نْ) [ ع ، ص ] تعریف ، افرین ، ستائل ، صفت کول۔

**تحصیل** :- (تَ + حْ + صِيْ + لْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : تحصیلونه] (۱) حاصلول (۲) جمع کول (۳) علم حاصلول (۴) د ضلعې وړه انتظامي حصه۔

**تحصیلدار** :- (تحصیل + دا + رْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : تحصیلداران ] (۱) وصولوونکے (۲) د تحصیل ذمه وار حاکم

**تحصیلداري** :- (تحصیل + دا + رِيْ) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تحصیلدارۍ ] د تحصیلدار کار یا عهده۔

**تحفظ** :- (تَ + حَ + فْ + فُ + ظْ) [ ع ، اس ، مذ] حفاظت ، بچاؤ ، ژغورنه۔

**تحفه** :- (تُ + حْ + فَه) [ فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تحفې ] (۱) ډالۍ ، سوغات ، ډویه ، پیشکشي۔ (۲) عجوبه څیز ، نادر څیز ۔

تحیه تحده مې هېڅ په لاس کښې نشته
درتـه عـرض بـه دعـا سـلام نـیاز کړم — خواجه محمد بنګش

د چندڼ د ونې لړ لړګي تحفه وي
نـهٔ د بـلې بدې ونې درسته څېه — خوشحال

ـــــ **پیش کول** :- (اص) پېشکشي وړاندې کول ، سوغات ورکول

ـــــ **لېږل** :- (اص) ډالۍ استول ، سوغات استول ، ډویه لېږل

ـــــ **ورکول** :- (اص) ډالۍ ورکول ، سوغات پیش کول ، ډویه وړاندې کول۔

**تحقیر** :- (تَ + حْ + قِيْ + رْ) [ ع ، اس ، مذ] بې قدري ، ذلت ، سپکوالے ۔

**تحقیق** :- (ت + حْ + قِيْ + قْ) [ ع ، اس ، مذ ] (۱) څېړنه ، لټونه ، چاڼ ، حال معلومونه (۲) رښتیا

ـــــ **کول** :- (اص) (۱) لټون کول ، څېړنه کول ، تلاش کول (۲) رښتیا معلومول

ـــــ **کېدل** :- (اص) (۱) لټون کېدل ، څېړنه کېدل ، تلاش کېدل ، (۲) رښتیا معلومېدل۔

**تحقیقات** :- (تَ + حْ + قِيْ + قا + تْ) [ ع ، اس ، ج ، مذ] تاکیکات حقیقت معلومول ، قانوني تفتیش

ـــــ **کول** :- (اص) تاکیکات کول ، قانوني تفتیش کول۔

ـــــ **کېدل** :- (اص) تاکیکات کېدل ، قانوني تفتیش کېدل۔

**تحقیقي** :- (تَ + حْ + قِيْ + قِيْ) [ پ ، اس ، ص ] (۱) د تحقیق سره تعلق لرونکے ، د څېړنې ، د لټون (۲) علمي۔

**تحلیل** :- (تَ + حْ + لِيْ + لْ) [ ع ، اس ، مذ] حل کېدنه ، ویلې کېدنه

**تحمـل** :- (تَ + حَ + مْ + مُ + لْ) [ ع ، اس ، مذ] صبر ، زغم ، برداشت ، سیل۔

څوک چې صبر ستا له مخه راته وائي
زمـا څـهٔ غـرض لـه صبر و تـحمل — خوشحال خان

ـــــ **کول** :- (اص) زغمل ، صبر کول ، سیل ، برداشت کول۔

**تحویل** :- (تَ + حْ + وِيْ + لْ) [ ع ، اس ، مذ] (۱) سپارل ، حواله کول (۲) د څهٔ ستوري په برج کښې راتلل۔

چې تحویل شي د میزان
توغ څرګند که زمستان — خوشحال خان

**تحویلدار** :- (تحویل + دا + رْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج: تحویلداران ]خزانچي ، پنګه ور۔

**تحیات** :- (تَ + حِيْ + یا + تْ) [ ع ، اس ، مذ ، ج ] د تحیة جمع ، سلامونه ، دعاګانې

**تحیة** :- (تَ + حِيْ + يَ + ةْ) [ ع ، اس ، مذ ، وا] سلام ، دعا ۔

**تحیر** :- (تَ +حَيْ + يُ + رْ) [ ع ، اس ، مذ] حېراني ، حېرانتیا حېرت۔

پروت وم په دریاب د تحیر کښې چپو وړے
نـهٔ پـوهېږم هېڅ چې اباسین وړم که جندي — علي خان

ـــــ **کول** :- (اص) حېرانېدل ، حېرانتیا ، ظاهرول۔

**تخپوش** :- (تَ + خْ + پو + شْ) [ پ (ګن) فا : تخت پوش ، اس ، مذ ، وا ، ج : تخپوشونه ] (۱) تخت پوش ، د تخت څادر (۲) د نمانځه یا ناستې دپاره د لرګي جوړ یو لوے پټ میز۔

**تخـت** :- (تَ + خْ + تْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : تختُونه ، تختینه] (۱) ګدۍ ، د بادشاه د ناستې مسند (۲) پلنګ ، کټ ، د لرګي نه جوړ پلن ټیټ شان مېز۔

د قـارون ګنجونه څهٔ شو
سلېمان پاڅېدو له تخته — مرزا انصاري

**تخت یا تخته** :- (اص) ګټه یا نقصان ، کامیابي یا سر خوړل ، د څهٔ مقصد د حاصلولو پخه اراده۔

**تخت پوش** :- (تَ + خْ + تْ + پو + شْ) [ فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : تخت پوشونه ] و ـــــ تخپوش۔

**تخ تخ** :- (تْ +خْ +تْ +خْ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) تختونه ، ماشوم خندونه (۲) د ماشومانو یوه لوبه۔

ـــــ **کول** :- (اف) اص (۱) تختول ، ماشوم خندول (۲) د ماشومانو یوه لوبه کول

**تخت سلیمان** :- (تخت + سُ + لې + ما + نْ) [ فا ، اس ، معرفه ، مذ] (۱) د سلیمان علیه السلام تخت چې پېریانو به په هوا اوړو ۔ (۲) د ډېره اسماعیل خان ضلعې په قبلئیز اړخ د غر یوه دنګه څُوکه۔

**تخت طاؤس** :- (تخت + طا + ؤ + سْ) [فا ، اس ، معرفه ، مذ] د شاهجهان بادشاه جوړ کړے تخت چې د طاؤس په شکل کښې وۀ ـ دا تخت ديارلس گزه اوږد دوه نيم گزه پلن او پنځه گزه اوچت وۀ ـ په شپږو پېښو ولاړ وو ـ په دې تخت يو کروړ روپۍ خرخ شوې وې او نادر شاه بادشاه د ځان سره ايران ته اوړے وو ـ

**تخت نشيني** :- (تخت + نِ+ شيْ + نيْ) [فا ، اس ، مؤ] په تخت کښېناستل ـ په گدۍ کښېناستل ، بادشاه کېدل ـ

**تخته** :- (تَ + خْ + تَه) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تختې] (۱) د لرگي پلنه اوږده ټوټه يا دړه ـ (۲) ډک ، پُور (۳) د کاغذ يا د کپړې ټوټه يا ټکړه (۴) چوکۍ ، پيړۍ (۵) د مُړده د لمبولو لرگے يا دړه (۶) د يو بل سره جُخت يا پيوست ځيزونه (۷) کيارۍ ، د مزکې وړه ټوټه ، (۸) بوړۍ ، د اشتهار لگولو د لرگي دړه ـ

ځو بېړۍ ئې په دا سيند کښې ډوبې د لاړې
چې تخته ئې مونده نۀ شي که ئې غواړې خوشحال خان

ــــ **کول** :- (اص) (۱) ډکول (۲) پلنول ، راځملول

ــــ **کېدل** :- (اص) (۱) ډکېدل (۲) پلنېدل ، په مزکه برابر راپرزېدل

**تخته بندي** :- (تخته + بَ + نْ + ديْ) [فا ، اس ،مؤ] (۱) د لرگي د ټوټو فرش (۲) د تختو دېوال

**تخته ځبر** :- (تخته + ښيِ + رْ) [اف : پ (قاموس) ص ، مذ] سخته کړنگ شوې واؤره چې خلق پرې خوئېږي ـ

**تخته سياه** :- (تخته + س + يا + هْ) [فا ، اس ، مذ] د لرگي هغه توره رنگ کړے تخته چې په چاک ليکل پرې کولے شي ـ

**تختي** :- (تَ + خْ + تَے) [اف: پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج : تختي] د خاورې غورۍ يا تبخے ـ

**تخځ** :- (تْ + خْ + دْز) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ ] تخز ، ترښځ ، د ترکاڼانو يو کالے يا اوزار ـ

**تخرگ** :- (تْ + خَ + رْ + گْ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : تخرگونه] (۱) ترخ ، بغل (۲) ځنگ ، خوا

ــــ **ته کول** :- (اف) اص ـ (۱) په ترخ کول ، څۀ ځيز اخستل (۲) ځوک په خپله سيمه کول ، خپل خوا ته کول (۳) ټوپک يا توره ځنگ ته اچول ـ

ــــ **لمدېدل** :-(اف) اص ـ پرېدل، ډارېدل، يرې اخستل ، وارخطا کېدل

**تخرگے** :- (تْ + خَ + رْ+گَے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تخرگي] (۱) د تخرگ اسم تصغير ، (۲) د کپړې هغه درې گوټيزه ټوټه چې د قميص د لستوڼي د مضبوطوالي دپاره په تخرگ کښې لگولے شي ـ

**تخز** :- (تْ + خْ + زْ) [اف : پ (قاموس) اس، مؤ ] و ــــ تخځ

**تخصيص** :- (تَ + خْ + صيْ + صْ) [ع ، اس ، مذ] خصوصيت

**تخفيف** :- (تَ +خْ + فيْ + فْ) [ع ، اس ، مذ ] (۱) کمې (۲) د څۀ کار يا نوکرې نه ويستل ، موقوفول ـ

**تخلص** :- (تَ + خَ + لْ + لُ +صْ) [ع ، اس ، مذ ] د شاعر هغه مختصر نوم چې په خپلو اشعارو کښې ئې استعمالوي ـ

**تخليق** :- (تَ +خْ + ليْ + قْ) [ع ، اس ، مذ ] پيداوښت ، پيدائش

**تخليقي** :- (تَ + خْ + ليْ + قيْ) [اُر ، ص] تخليق سره تعلق لرونکے پيدائشي

**تخليه** :- (تَ + خْ + لِ + يَه) [ع ، اس ، مؤ] خلوت ، د خلقو نه په گوټ کښې ، بېل ، ځان له ـ

**تُخم** :- (تُ + خْ + مْ) [فا ، اس ، مذ، وا ، ج : تختونه] (۱) تېمنه ، بيج (۲) اصل ، نسل ، خاندان ، پېړۍ (۳) اگۍ ، اويه ، ها ـ

دا تاثير د بد پتې دے که د تخم
چې تخم باندې کرې کېږي جودر خوشحال خان

ــــ **ختل** :- (اص) (۱) بېخ وتل ، تباه کېدل ، ورکېدل (۲) تخم راټوکېدل ، ورکېدل (۲) تخم ، راټوکېدل ، تخم رازرغونېدل

ــــ **ډېرېدل** :- (اص) نسل زياتېدل ، اولاد زياتېدل ـ

ــــ **زرغونېدل** :- (اص) (۱) تخم راټوکېدل (۲) بنياد لگېدل ، ميشته کېدل ـ

ــــ **شين کېدل** :- (اص) (۱) تخم زرغونېدل (۲) نسل زياتېدل

ــــ **کښل** :- (اص) بربادول ، بېخ بنياد ويستل ، تخم ورک کول

ــــ **وتل** :- (اص) (۱) تخم ورکېدل (۲) تخم راټوکېدل

ــــ **ورک کول** :- (اص) و ــــ تخم کښل ـ

ــــ **ورکول** :- (اص) (۱) تباه کول ، بربادول (۲) د کروندې دپاره تخم نۀ کښېښول ـ

ــــ **ورکېدل** :- (اص) (۱) تباه کېدل ، بربادېدل ، بېخ وتل (۲) د کروندې دپاره تخم نه پاتې کېدل ـ

**د چا تخم د مونږ نه ايستل** :- (اص) د چا بېخ بنياد ويستل ، بېخي بربادول ـ

**تخم** :- (تَ + خَ + مْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) د خولې ځگ (۲) د دېگ يا کټوۍ په سر ځگ ـ

**تخمار** :- (تْ + خْ + ما + رْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] ناموس ، خارښت ـ

**تخمخ** :- (تْ + خْ + مْ + خْ) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) شرمنده پښېمان (۲) پراګنده ، گډوډ ، ويږ پيږ ، خور وور ، تخه مخه

ــــ **کول** :- (اف) اص ، گډ وډ کول ، پرېشانول ، خور وور کول ـ

ــــ **کېدل** :- (اف) اص،گډ وډ کېدل، پرېشانېدل،خور وور کېدل

**زړۀ ته تخمخ کېدل** :-(ظف) اص ـ په يو خيز پسې پرېشانه کېدل يو ځيز ته تلوسه کېدل ـ

**تُخمه** :- (تُ + خْ + مه) [پ ، اس ، مو ] (۱) اصل نسل ، خاندان (۲) اغېږ ، بدهضمي ، د خېټې خرابي ـ

**تُخمه** :- (تُ + خْ + مَه) [پ (سو) اس، مؤ ، وا] د پټاخه دار ټوپک هغه حصه چې پټاخه به ئې پکښې کښېښودو ـ

**تُخمي** :- (تُ + خْ + ميْ) [پ ، اس ، ص] د تخم نه راټوکېدونکے ، د تخم نه راپيدا کېدونکے ـ

**تخميناً** :- (تَ + خْ + ميْ + ناً) [ع ، اس] اندازاً ، په ټُک

**تخمينه** :- (تَ + خْ + ميْ + نَه) [ع ، اس ، مؤ] اندازه ، ټُک

**تخنک** :- (تْ + خْ + نړَ + کْ) [اف : پ (قاموس) اس، مذ] ډېره مينه ډېر شوق او رغبت ـ

ــــ **کېدل** :- (اف) اص ـ ډېره مينه کېدل ، ډېر شوق کېدل ـ

**تخنکي** :- (تْ + خْ + نړَ + کيْ) [اف : پ (قاموس) ص] شوقين ، يو ځيز طرف ته مېل لرونکے ـ

**تخنگے** :- (تَ + خْ + نړَ + گَے) [پ (ظفر) ص] آماده شوے ، مائل

**تخنکي** :- (تْ + خْ + نْ + کيْ) [اف : پ (قاموس) اس ،مؤ] زړه ټوپۍ

**تخنول** :- (تْ + خْ + نْ + وُ + لْ) [پ ، مص مت] (۱) تخول ،ختنول ، ختول ، تيخورول (۲) تحريک ورکول ، شوق وروستل ، آماده کول ـ

**تخنولے** :- (تْ + خْ + نْ + وَ + نْ + وَ + لَے) [پ، مف ،مذ ،وا ، ج: تخنولي، (مؤ : تخنولے)] تخولے ، ختنولے ، تيخورولے ، ختولے

**تخنونگ** :- (تْ + خْ + نْ + وَ + نْ + گْ) [اف : پ (قاموس) حمص] و - تخنونه ـ

**تخنونه** :- (تْ + خْ + نْ + وُ + نه) [پ ، حمص] تخنونگ ، تخونه تخونگ، تيخوؤنه ، ختونه ، ختنونه ـ

**تخنوُونکے** :- (تْ + خْ + نْ + وُوْ + نْ + کَے) [اف : پ (قاموس) اس فاع ،مذ ، وا ، ج : تخنوُونکي (مؤ : تخنوونکې)] تخنوونکے ، تخوونکے ، تخوونے

، تېخوروونکے ، ختوونکے ، ختنوونکے ۔

**تخنوونے** :- (تْ + خْ + نْ + وُوْ + نے) [اف : پ (قاموس) اس فاع مذ ، وا ، ج : تخنووني (مؤ : تخنوونې) ] و ـــ تخنوونکے ۔

**تخنونګ** :- (ت+خ+ن+و+ن+ګ) اَف:پ(قاموس )حمص ) و ـــــ تخنونه

**تخنونه** :- (ت+ خ+ ن+ و+ نه ) [پ ـ حمص ] تخنونګ ـ تخونه ـ تخونګ تیخورونه ـ ختونه ـ ختنونه

**تخنوُونکے** :- (ت+خ+ن+و+وُو+ن +کے)[اَف: پ (قاموس ) اس فاع ـ مذ ـ وا ـ ج : تخنوونکي (مو: تخنونکے ]تخنوونے ،تخوونکے، تخوونے ، تېخوروونکے ، ختوونکے ، ختنوونکے ۔

**تخنوُونے** :- (ت+ خ+ ن+ وو+ نے ) [اَف: پ (قاموس ) اِس فاع ـ مذ ـ وا ـ ج : تخنوونې (مو: تخنوونے)]و- تخنوونکے

**تخنے** :- (ت+ خ+ نے) [اَف ـ پ (قاموس ) اس ـ مذ ] (۱)یره اوتره (۲) تېخور ـ ختونه ـ تخنونه ـ

**تخنې تخنې** :- (ت+ خ+ نې+ ت+ خ +نې ) [پ ـ ص ]ذره ذره ـ ریچې ریچې ـ ټوټې ټوټې ـ تخنې تخنې ـ

**کول**:- اِص ،ذره ذره کول ـ ټوټې ټوټې کول ـ تخنې تخنې کول ـ

**کېدل** :- اِص ، ذره ذره کېدل ـ ټوټې ټوټې کېدل ـ تخنې تخنې کېدل ـ

**تخني تخني** :- (ت+ خ+ ني+ ت+ خ +ني) [اف:پ ـ(قاموس) ـ ص ـ ] و- تخنے تخنے ـ

**کول** :- (اَف) اِص و ـــــــ خنے تخنے کېدل ـ

**تخنېدل** :- (ت+ خ+ نې+ د+ ل ) [پ ـ مص لا] تخنېدل ،ختنېدل ،ختېدل ، تېخورېدل (۲)مینه راتلل ، زړۀ کېدل ، مائله کېدل ـ

**تخنېدلے** :- (ت+ خ+ نې+ د+ لے ) [پ ـ مف ، مذ ، وا ، ج : تخنېدلي ، (مو:تخنېدلې ] تخنېدلے ، ختنېدلے ، تیخورېدلے ، ختېدلے ـ

**تخنېدنګ** :- (ت+ خ+ نې+ د+ ن +ګ ) [اَف: پ(قاموس)حمص ]و- تخنېدنه

**تخنېدنه** :- (ت+ خ+ نې+ د+ نه ) [پ ـ حمص ] تخنېدنګ ، تخنېدۀ، تخېدنګ ، تخېدنه ، تیخورېدنه ، ختېدنه ـ

**تخنېدُونکې** :- (ت + خ + نې + دو + ن + کے ) [ پ ـ مف ،مذ وا ، ج : تخنېدُونکي (مو: تخنېدُونکے ) تخېدُونکے ،تیخورېدُونکے ، ختېدُونکے ، ختنېدُونکے ]

**تخنېدۀ** :- (ت+ خ+ نې+ دۀ+ ) [پ ـ حمص ]و ــــــــ تخنېدنه ـ

**تخول** :- (ت+ خ+ و+ ل ) [اَف: ـ پ (قاموس ) مص مت ]و ـــــ تخنول ـ

**تخولې** :- (ت + خ + و+ ل ې+ ) [ اَف : پ ـ مف ، مذ ، وا ، ج: تخولي (مو: تخولے ]و ــــــــ تخنونے ـ

**تخونګ**:- (ت+ خ+ و+ ن+ ګ )[اَف : پ (قاموس) ـ حمص ] و ــــ تخنونه ـ

**تخونه** :- (ت+ خ+ و+ نه ) [اَف:پ (قاموس) ـ حمص ] و ـــــــــ تخنونه ـ

**تخوُنے** :- (ت+ خو+ نے+) [پ (ظفر)اِس ، مذ ، وا ، ج:تخوني ، (مؤ:تخونۍ] هغه ښاروے چې ډېر خوراک خوري، خوراکي ځناور ـ

**تخوُونکے** :- (ت+ خ+ وو+ ن +کے ) [اَف:پ(قاموس) اس فاع، مذ ، وا ، ج : تخوونکي ، (مؤ: تخوونکے )] و ــــــــــــ تخنوونکے ـ

**تخوُونے** :- (ت+ خ+ وُو+ نے ) [اَف :پ (قاموس)اِس فاع ، مذ ، وا ، ج : تخووني (مؤ : تخوونے ) ـ] و ــــــــــــ تخنوونکے ـ

**تخه** :- (ت+ خه+ ) [اَف:پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج : تخې ] (۱) د شملو په وېخ کښې بُوټسُوري (۲) د مار زړه ښرمن چې غورزولے ئې وي (۳) پُوچه ، متر ، شملے ، چې د ماستو په شان موده کړے شي ـ

**تخې جوړول** :- (ب ، خ) اِص شُملے د ماستو په شان موره کول ، پوچه جوړول ـ

**غورځول**:- (ظفر) اِص ، د مار زړه ښرمن غورځول ـ

**تخې تخې شُملې** :- (ظفر) اِص ، هغه شُملے چې په وېخ کښې ئې ډېر بوټسوري وي

**تخې** :- ( ت +خې) [اَف:پ(قاموس) اِس ،مذ]تیخور، تخونه ، ختونه ـ

**تخېدل** :- (ت+ خې+ د+ ل ) [اَف:پ (قاموس) ـ مص لا]د ــــــ تخنېدل ـ

**تخېدلے** :- (ت+ خې+ د+ لَے ) [اَف:پ (قاموس)مف،مذ ، وا ،ج :تخېدلي (مؤ:تخېدلے)]و ــــــــ تخنېدلے ـ

**تخېدنګ**:- (ت+ خې+ د+ ن+ ګ ) [اَف:پ (قاموس) ـ حمص ]و ــــ تخنېدنه ـ

**تخېدنه**:- (ت+ خې+ د+ نه ) [اَف :پ (قاموس) ـ حمص ] و ــــــ تخندنه ـ

**تخېدُونکے**:- (ت+ خې+ دُو+ ن+ کے ) [اَف:پ (قاموس)مف ، مذ ، وا ، ج : تخېدونکي (مو:تخېدونکے )] و ـــــ تخنېدونکے ـ

**تخېدۀ**:- (ت+ خې+ دۀ) [اَف:پ (قاموس)ـ حمص ] تخېدنه ، تخنېدنه ، تیخورېدنه

**تخیّل** :- (ت+ خ+ ي+ ل ) [ع ، اِس ، مذ]تصوّر ، قیاس ، خیالي ، تصویر ـ

شوه دنیا د تخیل مې ګل ورینه
نوم د کوم یو پسرلي په زبان راغے        حمزه شنواري

**تدارک** :- (ت+ دا+ رُ+ ک ) [ع، اِس ، مذ] تدبیر ، بندوبست ، تابیا ـ

**تدارک کول** :- (ص:تابیا کول ، تدبیر کول ، بندوبست کول )

**کېدل** :- (اِص ، تابیا کېدل ، تدبیر کېدل ، بندوبست کېدل )ـ

**تدبّر**:- (ت+ د+ ب+ ر) [ع ، اِس ، مذ] دُوراندیشي ، د کار په انجام غور فکر کونه ، هوښیارتیا ـ

**تدبیر**:- (ت+ د+ بي+ ر+ ) [ع، اِس،وا ، ج : تدبیرونه] (۱)سوچ ، فکر ،خیال (۲) تجویز ، بندوبست ـ

له خاطره مې عشق یوړو تدبیر ورو ورو
دېوانه شوم سزاوار د زنځیر ورو ورو        کامګار خټک

د تدبیر بام ته به ولې زۀ پوړۍ د تدبیر نۀ ږدمه
لاس و پښو کښې مې تر اوسه لاخو وینه د صحت شته    طاهر کلاچوي

چې شو کامیابه تدبیرونه زما
نو تقدیرونو ماته خوا راکړه        طاهر کلاچوي

**تدریج** :- (ت+ د+ رِي+ ج ) [ع ، اِس ، مذ] درجه په درجه ، پوړۍ په پوړۍ، ورو ورو ـ

**تدریس** :- (ت+ ذ+ رِي+ س ) [ع:اس ، مذ] تعلیم ، سبق ، پړهائي ـ

**تدفین** :- (ت+ د+ في+ ن) [ع ، اِس ، مذ]ښخونه ، دفن کونه ـ

**تدوین** :- (ت+ د+وِي+ ن) [ع ، اس ، مذ]تالیف کونه ، جمع کونه ، مرتّب کونه

**تذبذب**:- (ت+ ذ+ ب+ ذ+ ب ) [ع ، اِس ، مذ] شک شبه ، دوجاله توب ، حېراني ـ

**تذکره** :- (ت+ ذ+ ک+ رَه) [ع، اِس ، مو](۱)ذکر، بیان ، یادداشت (۲) د ژوند حالات ، هغه کتاب چې د شاعرانو حالات پکښې لیکلي وي

**تذکیر** :- (ت+ ذ+ کي+ ر) [ع ، اِس ، مذ]نروالے ، د تانیث ضد ـ

**تذلیل** :- (ت+ ذ+ لي+ ل) [ع ، اِس ، مذ] بې عزّتي ،سپکاوے

**تر**:- (ت+ ر) [پ حرف](۱)پورې ، راسې(۲) له ، ښخه، نه ، ترینه (۳) د لاندې لکه : ترلندې ـ

د کامگار د میني راز به څرنگ پټ شي
چې دائم مې وچې شونډې لېمۀ تر یم

**تر** :- (ت+ ر) [فا ـ ص] (۱) لُوند ـ (۲) تازه ، غوړ ـ
کور مـحلت هـمـه په دښمنۍ ورله تیار کا
دا تـرائـې وبـاسـه لـه سرایـه په ورو ورو مهین

**ترا** :- (ت+ را) [اَف:پ (قاموس) اس، مو] (۱) ترهـه، ویـرَه ، ډار (۲) نفرت ، کرکه

**کـول** :- (اَف) اص ، (۱) ترهـه کـول ، ویـره کـول ، ډارېـدل ، (۲) نفـرت کـول ، کرکه کول ـ

**کېدل**:- (اَف) اص (۱) ترهه کېدل ، ویره کېدل ، ډار کېدل ، (۲) نفرت کېدل ، کرکه کېدل ـ

**ترا** :- (ت+ را) [پ(ب، خ) اس ، مو ، وا ، ج : ترے ] تازه ، پره ، ډلی ، ټوټه ـ

**تُراب** :- (ت+ را+ب) [ع ، اس ،مذ] (۱) خاوره ، ختهٔ (۲) گډو ـ
دغـه څاڅکے رونده له پاسه راغے
په دا مزکه کعبې گډلې له تُراب شي مرزا انصاري

**تُراب**:- (ت+ را+ب) [پ ، ص ، مذ (مو ، وا ، تُرابه ، ج : ترا ے] د خراب سره یو ځاے استعمالېږي ، او په معني کښې زیاتے پېدا کوي ، لکه : خراب ، تراب ، ډېر خراب ـ

**خراب تراب مخ** :- اص ، خیرن ، خیچن مخ ، گنده مخ ، ناولے مخ ـ

**خرابې ترابې جامې** :- اص ،خیرنې ، خیچنې جامې ، گنده جامې ـ

**خرابې ترابې خبرې** :- اص، گنده او بیهوده خبرې ، فضول خبرې پُوچې خبرې

**ترابخې** :- (ت+ را+ بَ+ خې) [اَف:پ (قاموس) اس ، مو] تـرپکے ، تـربخکے ، ټوپونه ـ

**ترابخې** :- (ت+ را+ ب+ خې) [پ(ظفر) اس ، مو ، ج] ترپکے ،ټوپونه ـ

**تراپ** :- (ت+ را+ پ+ ) [پ رخ) اس ، مذ] ترپ ، ټوپ ـ

**تراټ** :- (ت+ را+ ټ) [پ، اس ، مذ ، وا] (۱) تېز زغل ، تېزه منډه زغاښت ، ترپه (۲) چابک ، کروړه ، متروکه (۳) د غلے اچولو پنډېړے ، انډېړے ، خمبه (۴) دیو بوټي نوم

**کول** :- (اص ، منډه کول ، په تراټ زغلېدل ، دوکول )

**آس په تراټ وهل** :- (اَف) اص ، اَس ته چابک ورکول ، اَس ته پونده ورکول ، د تېز زغلولو د پاره اس په کروړه یا متروکه وهل ـ

**په تراټ زغلېدل** :- اص ، تېز ، تېز زغلېدل ، منډه وهل ، په منډه تلل

**په یو تراټ تلل** :- اص ، په منډه تلل ، په زغل تلل ـ

**په یو تراټ راتلل**:- اص ،په زغل راتلل ، په منډه راتلل ـ

**تراټه** :- (ت+ را+ ټه) [اَف :پ(قاموس) ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تراټې] (۱) یو قسم د ریښمو گُلکاري (۲) د څادر یا بړستنې پیڅه یا حاشیه (۳) تسمه (۴) پیوند ـ

**تراټه** :- (ت+ را+ ټه) [پ (ب ، خ) اس ، مؤ ، وا ، ج : تراټې] د مزرۍ نه جوړ هغه انډېړے چې غله پکښې کښېښولے شي ، پرپړی ـ

**تراټے** :- (ت+ را+ ټے) [اَف:پ (قاموس) ـص ] ، چغـزي څیـز ، پـه آسـانۍ ماتېدونکے څیز ، کړسیندے څیز ـ

**تراخ** :- (ت+ را+ خ) [اَف:پ (قاموس) اس صو ، مذ] دیو څیز د اُوچت ځاے نه د راغورزېدو یا راپرېوتو آواز ـ

**تراخۀ** :- (ت+ را+ خۀ) [اص ، مذ ، ج ]د تریخ جمع ، د خوارۀ ضد ـ

**تـراړه** :- (ت+ را+ ړه) [اَف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : تـراړې ] (۱) لویـه څیزه یا رنجه (۲) تسمه ـ

**ایستل**:- (اَف) اص (۱) د کپـړې نـه رنجـه یـا تسـمه ویسـتل (۲) د چمـړې نـه تسمه ایستل ـ

**تراړ**:- (ت+ را+ ړ) [اَف:پ(قاموس) اس ، مذ ، مؤ ، وا: تراره ، ج : تراړې] ناقلار ، په یره ، یرې اخیستے ، هغه څوک چې زړۀ ئې په قلار نۀ وي ـ

**تراره** :- (ت+ را+ رَه ) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ] ویره ،ترهه ، ډار ـ

**تراره** :- (ت+ را+ رَه ) [پ (ظفر) اس ، مؤ ، وا ، ج : ترارې] (۱) ویره ، ترهه ، ډار (۲) ناقلارې ـ

**کول**:- اص (۱) یره کول ، ډارېدل (۲) ناقلاره کېدل ـ

**کېدل**:- اص (۱) یرېدل ، ډارېدل ، (۲) ناقلارېدل ـ

**تراړ**:- (ت+ را+ ړ) [آف: پ (قاموس) اس ،مذ ، (مؤ ، وا : تراړه ج: تراړې ] د اُوبۀ درې کلن بچے ، درې غابۀ اُوبۀ ـ

**تـراړه** :- (ت+ را+ ړَه ) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج: تـراړې] (۱) د غرۀ لمن
(۲) کانیزه یا کاړجنه مزکه (۳) اَغزنه جاړه ـ

**تـراړه**:- (ت+ را+ ړَه) [پ (ب،خ) اس ، مـؤ ، وا ، ج : تـراړې] لـوے ، ډاړه ، د غنمو وړې یا د چنو گونگرې چې د خوړلو د پاره اوسوځولے شي ـ

**اچـول** :- (گن) اص ، ډاړه کـول ، لـوے کـول ، د غنمـو وړې یـا د چنوگـونگرې وریتول ـ

**کول** :- اص (۱) ډاړه کول ، لوے اچول (۲) څوک سوځول (۳) په گولو سُورے سُورے اچول ـ

**تـراړه کېدل** :- اص (۱) ډاړه کېـدل ، لـوے کېـدل (۲) سوځېدل (۳) پـه گولـو سُورے سُورے کېدل ـ

**ترازُو**:- (ت+ را+زُو ) [فا ، اس ، مو] تله ، د وزن کولو آله ، ترکړی ، کنډه ـ

**تـرازه** :- (ت+ را+ زَه ) [پ اس ، مـؤ ، وا ، ج : تـرازې] د خټکـي یـا هنـدوانې ډلۍ یا ټکړه ، پَره ـ

**کول** :- اص ، خټکے یا هندوانه پرې پرې یا ډلۍ ډلۍ کول ـ

**کېدل** :- اص ، خټکے یا هندوانه پرې پرې یا ډلۍ ډلۍ کېدل ـ

**ترازه** :- (ت+ را+ زَه ) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ] د اُوبو لوے بند ، ډېم ـ

**تراش** :- (ت+ را+ ش) [فا ، اس ، مذ] (۱) طرز، طیرقه (۲) ایجاد (۳) جوړښت (۴) پرې کونه ، کټ کونه (۵) سنگار ـ

**تراشل** :- (ت+ را+ ش +ل) [پ فا: تراشیدن ، مص مت] (۱) توږل (۲) پرې کول ـ

**تراشل** :- (ت+ را+ شَ +ل) [پ، مف ، مذ ، وا ، ج: تراشلي (مؤ: تراشلې] (۱) توږلے ـ (۲) پرې کړے ـ

**تراشنګ**:- (ت+ را+ شَ +ن +گ ) [ آف: پ ( قاموس ) حمص ] و- تراشنه

**تراشنه**:- (ت+ را+ ش +نه ) [پ ـحمص ] (۱) تراشنگ ، توږنه (۲) پرې کونه

**تراشُونکے** :- (ت+ را+ شُو +ن +کے) [پ : اس فـاع ، مذ ، وا ، ج : تراشُونکي ، (مؤ : تراشُونکې ] (۱) توږونُکے ـ (۲) پرې کوونکے ، تراشونے ـ

**تراشُـونے** :- (ت+ را+ شُـو +نـے) [پ ، اس ص، مـذ ، وا ، ج: تراشُـوني (مـؤ: تراشُونې] و ـــــــــ تراشُونکے ـ

**تراشې**:- (ت+ را+ شې) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : تراشې] د گلکارانو آله ـ

**تراغ** :- (ت+ را+ غ) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: تـداعي ، (مـؤ:

تراغه ، ج : تراغې[تاؤ راتاؤ شوې ، منجیله.

**تراک** :- (ت+ را+ ک) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تراکُونه] (۱) چاؤد ، درز (۲) ترا ، رخه ، د تړیک رخ (۳) د څهٔ څیز د راپرېتو آواز (ظفر).

**ترامبیه** :- (ت+ را+ م +ب +یه) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، ج : ترامبیې ] اندر پایه ، پوړۍ ، پارسنګ.

**ترامـه** :- (ت+ را+ مَـه) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج: ترامـې]د اوسپنې څادر

**تراتې**:- (ت+ را+ ن +تې ) [ آف: پ (قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج : تراتتي ، (مؤ: تراتتې )]پراخ ، پلن ، ویړ.

**ترانځه** :- (ت+ را+ ن+ دزه ) [پ (ظفر ) اس ، مؤ ، وا ، ج : ترانځې] د مائع څیزونو لکه د ګبین وغېره ، سلېښناکي ، سلېښ ، سرېش

**تراڼ** :- (ت+ را+ نړ) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ] آغـاز ، شـروع ، پـه کـار لاس پورې کونه.

**کول** :- اِص ، په کار لاس پورې کول ، کار شروع کول.

**کېدل** :- اِص ، په کار لاس پورې کېدل ، کار شروع کېدل.

**تراڼه**:- (ت+ را+ ن +ړه) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ] غُصه ، قهر ،کاوړ.

**کول**:- (اُف) اص ، غُصه کول ، قهر کول ، کاوړ کول.

**ترانه**:- (ت+ را+ نه) [فا: اس ، مؤ ، وا ، ج : ترانې] نغمه ، قومي نغمه.

حاجت نهٔ لري چې ساز ته یوه داسې ترانه یم
شوک مې نهٔ رسي مقصد ته یوه داسې افسانه یم طاهر کلاچوي

**تراو** :- (ت+ را+ و) [پ (آفر ) اس ، مذ]یره ، ډار ، ترهه ، وېره.

**خـوړل**:- اص ، یـره کـول ، ډارېـدل ، ویرېـدل ، ترهـه کـول ، لکـه : "مـونږ د بدمعاش د وجود نه زیات د هغهٔ د نامې نه تراو خورو".

**تراو**:- (ت + راو) [پ (ظفر) اس ، مذ] یوه پیمانه ، د اوړي دریمه برخه

**تراوسه**:- (ت+ ر+ او+ سه) [پ ـحرف]تر دې وخته ، اوسه پورې.

**تراونګې** :- (ت+ را+ و +ن +ګې )[پ (ظفـر) اس ، مـذ]تـرګمې ، تروړمـې ، چـې سپوږمۍ نهٔ وي راختلې.

**تـراوه** :- (ت+ را+ وَه ) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ،ج : تـراوې] د خـاورو وړلو بوړۍ یا بوجۍ ،کلچ بوره ، کوارهٔ.

**تراوهٔ** :- (ت+ را+ وَهٔ ) [پ ،ص مذ ، ج ]د تریو جمع ، د خوارهٔ ضد ، ترش.

**تراوه** :- (ت+ را+ وَه ) [پ (ظفر) اس ، مؤ، واج : تراوې] د خاورو وړلو بـوړۍ یـا بوجۍ ، کلچ ، بوره ، کوارهٔ.

**تراوې** :- (ت+ را+ وې) [پ ع: تراویح اس ، ج : مؤ] د روژې پـه میاشـت کښـې د ماسختن نمانځه سره چې کوم شل رکعته نفل نمونځ کولے شي.

**کول** :- اِص ، د تراو نمونځ کول.

**تراه**:- (ت+ را+ ه ) [پ (خ) اس ، مؤ] تره ، ویره ، ډار.

نهٔ ئې نمونځ د جنازې نهٔ ئې امام شته
نـهٔ زکـوٰة نـهٔ سرسـایـه نهٔ د زرهٔ تراه خوشحال

**په تراه کېدل** :- اص ، ویره کول ، ډار کول.

بل چې دخول کا مخفي لـه خـلقو
بل چـې پـه تراه وي له واړه لوکه خوشحال

**ترایي**:- (ت+ را+ یي) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ]یو بُوټے دے چې د مـالوچ پـه شان یو ګل ئې په سر کښې راټوکېږي

**تُرب** :- (ت+ ر+ ب) [پ ،اس ، مذ]د تاش د لوبې یو قسم.

**تربارے** :- (ت+ ر+ با +رے) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ترباري ] د کور په ګوټ کښې نېغ ولاړ ښخ کړے لرګے چې سامان پرې کښېږدي.

**تربت** :- (ت+ ر+ ب +ت) [پ ـص](۱) پرېشانه ، تنګ ، خفه ، ظهیر (۲) د باد بندېز.

**تربت کول**:- اِص ، پرېشانه کول ، تنګول ، خفه کول ، ظهیرول ، تربتول.

**کېدل**:- اص ، تربتېدل ، پرېشانه کېدل ، دلګیر کېدل ، خفه کېدل ،تنګېدل ، ظهیرېدل.

**تُربت** :- (ت+ ر+ ب + ت) [فا: اس ، مذ ، وا ، ج : تُربتونه ]قبر، ګور، مزار.

**تربتـر** :- (ت+ ر+ بَ +ت +ر) [فـا ـص](۱) ډېـر لُونـد (۲) چـه غـوړ ترینـه بهېږي ، ډېر غوړ

**تربتــول** :- (ت+ ر+ بَ +تَ +و +ل) [پ ـمـص ـمـت ] تنګـول ، خفـه کـول ، ظهیرونه ، دلګیرونه.

**تربتوونکے** :- (ت+ ر+ بَ +تَ +وُو+ ن +کے ) [پ اس ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج : تربتوُونکي (مؤ: تربتوُونکې ] تنګوُونکے ، خفه کوُونکے ، دلګیروُونکے ، ظهیروُونکے ، تربتوُونے.

**تربتوُونے** :- (ت+ ر+ بَ +تَ +وُو+ نے ) [پ ـاس فـاع ، مذ وا ، ج: تربتـوُوني ) (مؤ : تربتوُونې ] و ــــ تربتوُنکے.

**تربتېدل**:- (ت+ ر+ ب +تې +د +ل) [پ مص لا] تنګېدل ، خفه کېدل ، دلګیر کېدل ، ظهیرېدل.

**تربتېدنه**:- (ت+ ر+ بَ +تې +د +نه ) [پ ـحمص] تربتېدهٔ ، تنګېدهٔ ، خفه کېدهٔ ، دلګیر کېدنه ، ظهیرېدنه.

**تربتېــدُونکے** :- (ت+ ر+ بَ +تــې +دُو +ن +کــے ) [پ ، صــف ، مــذ ، وا ، ج: تربتېـدُونکي (مـؤ: تربتېـدُونکې )]تنګېـدُونکے ، خفـه کېـدُونکے ، ظهېرېدُونکے ، دلګېرکېدُونکے ، تربتېدُونے.

**تربتېدُونے** :- (ت+ ر+ بَ +تے +دُو+ نے ) [پ ـصف مذ ، وا ج: تربتېدُوني ، (مؤ : تربتېده نې] و ـــــ تربتېدُونکے.

**تربتېدهٔ**:- (ت+ ر+بَ +تې +دَهٔ) [پ ـحمص] و ــــ تربتېدنه.

**تربُخته** :- (ت+ ر+ بُ +خ +ته ) [پ (ظفر) ص، مؤ] تربوخته ، بدبویه ، سخا.

**تربخته کېدل** :- اِص ، سخا کېدل ، بدبویه کېدل ، تربوخته کېدل.

**تربګني** :- (ت+ ر+ ب +ګ +نـي) [پ ـاس ، مـؤ](۱) تربورګلـوي ، تربګښـت ، تربورولي ، تربورتیا ، تربورتوب (۲) دښمني بغض ، کینه ، حسد.

لُولپه مې شو صورت اور مې پـه زړهٔ دے
راتـــه پـــښـــه د غـــمـــازو تـــربـــګـنـــي ده بېدل

**پالل** :- اِص ، د تربورولۍ په تول پورهٔ وتل ، تربورولي کول ، تربګني کـول ، تربورګلوي پالل ، تربوري ګلوي کول.

**کول** :- اص ـو ـــــــ تربګني پالل.

**تربګښت** :- (ت+ ر+ ب +ګي +نَ +ت ) [آف: پ (قاموس) اس ]او ـــتربګني

**تربـل**:- (ت+ ر+ بَ +ل) [پ (ب، خ) اس ، مذ] وړه مړۍ ، ډوډۍ چـه پـه یخنۍ یا زېمنه/زومنه کښې ماته کړے شي او د پاسه پرې غوړي واچولے شي.

**تربوچـه** :- (ت+ ر+بُـو +چـه) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ] تړپچـه ، یـو قسـم سبزي چې شنه خوړلې شي.

**تربوخته** :- (ت+ ر+ بو +خ +ته) [آف: پ (قاموس) ص ]- و ـــــــتربُخته

**کېدل**:- (اَف) اص ، و ــــتربُخته کېدل.

**تربوخته هوا**:- (تربوخته + ه +وا ) [آف: پ ( قاموس) اس ص، مؤ] سخا او

بدبُويه هوا ـ

**تربوختي**:- (ت +ر+بو+خ +تي) [آف:پ (قاموس) اس، مؤ ]بدبوي ، سخاوالے

**تربُور**:- (ت+ ر+ بو +ر) [پ ،اس ، مذ ، وا ، ج : تربرُونه ، تربوران]

(۱) د ترۀ زوے ، د كاكا زوے ، د ترور زوے ،(۲) دښمن ، رقيب

**تربورتـــوب** :- (تربــور+ تــو+ب )[پ اس ، مــذ ] (۱)تربــوروالے ، تربــورولي ، تربورګلوي ، تربورتيا ، د ترۀ يا د ترور د زوے والي رشته (۲) دښمني ، حسد ، كينه ، رقابت ـ

**توربورتيا** :- (تربور+ ت+ يا) [پ : اس ، مؤ]و ـــــــ تربورتوب ـ

**تربورګلوي**:- (تربُور+ ګ + ل +وي) [پ :اس ، مؤ ]و ـــــ تربورتوب ـ

**پالل**:- اص ، و تربګني پالل ـكول: اص و ـــــ تربګني پالل ـ

**تربوروالے** :- (تربور+ وا+ لے) [پ ، اس ، مذ]و ـــ تربورتوب ـ

**تربورولي** :- (تربور+ وَ+ لي) [پ،اس ، مؤ]و ـــــ تربورتوب ـ

**تربُوزک** :- (ت+ ر+ بُو +زَ +ک ) [پ،اس ، مذ]د څادر په پيڅه يا د پټكي په شمله پوزه او د پوزي نه لاندي مخ پټونه ، مول ، كچ بېز ، تينبوزک ـ

**وهل** : اص ، د څادر په پيڅه يا په پټكي پوزه او د پوزي نه لاند مخ پټول ـ

**تربيت** :- (ت+ ر+ ب +ي +ت ) [ع ،اس ، مذ ، وا ، ج : تربيتُونه ] پالنه ، پالل ، پرورش ، ساتنه ـ

بد سرشت په تربيت به سرے نۀ شي

د لــېوانــو عــادتــونــه نــۀ بــدلــېږي طاهر كلاچوي

**تربېله** :- (ت+ ر+ بې +لـه) [پ ،اس ، معر] د هزارې په ضلع كښې د يو ځاے نوم چېرته چي يو ډېر لوے بند په اباسين تړلے شوے ـ

**ترپ** :- (ت+ ر+ پ)[پ ،اس ، مذ](۱) ترپه ، ټوپ (۲) زغل ، منډه (۳) ترق ، په مزكه د څۀ څيز د غورزېدو آواز ـ

**كول** :ـ اص (۱)ټوپ كول ، (۲) منډه كول ، (۳) د څۀ څيز د غورزېدو آواز كول

**كېدل** :ـ اص (۱) ټوپ كېدل (۲)منډه كېدل (۳) د څۀ څيز په مزكه د غورزېدو آواز كېدل ـ

**له ترپه لوېدل** :ـ(اَف)اص و ـــــــ له ترپه پرېوتل ـ

**ترپ**:- (ت+ رَ+ پ) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ](۱) يو قسم سورلي

(۲) يو قسم وابنۀ چه د غرۀ په خوا كښې پېدا كېږي او سپين ګل كوي ـ

**ترپا** :- (ت+ ر+ پا) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ]ترپكي ، ترپې ، منډې ، ترړې ـ

**ترپال** :- (ت+ ر+ پا +ل) [اس ، مذ ، وا ، ج : ترپالُونه ]د موم جامې د قسم هغه ټاټ چه د باران نه بچ كولو د پاره په سامان غوړولې شي ـ

**ترپاڼ**:- (ت+ ر+ پا + ڼ) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ] بارتنګ ـ

**ترپايه**:- (ت+ ر+ پا+ يه ) [پ ـحرف]تر آخره ، تر انجامه ـ

بنـد پـه بـند كړه وړه ده سر تر پايه

پيچ په پيچ ګېره ګېره ده لور د لوره مرزا خان انصاري

**رسول** :- اص ، تر آخره رسول ، سر ته رسول ، تر انجامه رسول ، تر پايه كول ـ

**كول**:- اص ، و ـــــــ تر پايه رسول ـ

**ترپچه** :- (ت+ ر+ پ +چـه ) [آف: پ (قـاموس) اس ، مذ ]يـو قسم سبزي چـه كچه خوړله شي ـ

**ترپچه**:- (ت+ رَ+ پ +چه ) [ آف: پ (قاموس ) اس ، مؤ، وا ، ج : ترپچې ] چچه

**ترپخوا**:- (ت+ ر+ پ +خوا) [پ :ص ] د مخكښې نه ، د وړاند نه ـ

**ترپړ**:- (ت+ ر+ پ+ ړ) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ(مؤ ، وا: ترپړه ، ج: ترپړې)]

دربړ ، خيرن خيچن ، ناراسته ، او بېكاره سړے ـ

**ترپـړ**:- (ت+ رَ+ پَ+ ړ) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ] بېكاره خيرنه خيچنه او زړه جامه ـ

**ترپـړه**:- (ت+ رَ+ پَ+ ړَه ) [پ (ظفر) اس ، مـؤ ، وا ج : ترپـړې] پـه بـدن بانـد د خيرو داغُونه ، په بدن باند د خيري نخښې ـ

**ترپكے**:- (ت+ رَ+ پَ+كے) [پ (ظفر) اس ، مؤ، ج] ټوپونه ، غوړدانګے ـ

**وهل**:- اص ،ټوپونه وهل ، خر تيزي وهل ـ

**ترپكي**:- (ت+ ر+ پ +كي) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ]د تېز اُوبښ پـه شان بې قاعدې او بې ډوله تګ كول ـ

**وهل**:- (اُف) اص ، پورته ښكته ټوپُونه وهل ـ

**ترپـل**:- (ت+ ر+ پَ+ل) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ]د ماشومانو يـوه لوبـه چـه ګېرچاپېره كښېني او غوزانو سره كوي ـ

**ترپل** :- (ت+ ر+ پ +ل) [آف: پ (قاموس) مص مت]ـ (۱) بې ډولـه طريقې سره خاوره هوارول (۲) څيزونـه يـو بـل د پاسـه بې طريقې ايښـودل بې ترتيبه څيزونه انبارول ـ

**ترپل** :- (ت+ ر+ پ +ل) [پ مص مت ](۱)دربَل ـپـه اوپـره خـاوره ټوپونـه وهـل ، په ټُوپونو سره مزكه پخول يا هوارول (۲) بې ترتيبه زغلېدل يا ټوپونه وهل

**ترپلل** :- (ت+ ر+ پ +ل +ل) [پ: مص مت ]د جنګ نه پـه تېښـته ځـان خلاصـول ، په ترپو زغلېدل ـ

**ترپلنګ** :- (ت+ رَ+ پ +ل +ن +ګ) [پ ـحمص]ترپلنګ ، د جنګ جګړې نه په تېښته ځان خلاصونه ـ

**ترپلودل**:- (ت+ ر+پ +لو +د +ل ) [آف: پ (قاموس) مص مت ]تېـز تېـز زغلېـدل ، تېزه منډه وهل، تېښته كول ، په وارخطائي سره زغلېدل ـ

**ترپلودنه** :- (ت+ ر+ پ +لو +د +نه ) [آف: پ (قاموس) حمص] تېـز تېـز زغلېدنـه ، د جنګ جګړې نه تېښته كونه ـ

**ترپلودُونكے** :- (ت+ رَ+ پ +لو +دُو +ن +كے ) [آف: پ (قاموس) اس ، فـاع ، مذ ، وا ، ج : ترپلودُونكي (مؤ: تر پلودُونكې ) ] (۱)زغلېـدونكے(۲) ټوپُونه وهُونكے ـ

**ترپلُوكـــے** :- (ت+ رَ+ پ +لُــو +كــے) [آف: پ (قــاموس) اس ، مـــذ ، وا، ج : ترپلُوكي]يو قسم بيماري ـ

**ترپلونكے** :- (ت+ رَ+ پ +لُو +ن +كے) [پ :اس فاع، مذ، وا ، ج: ترپلُونكي (مؤ: ترپلُونكې )]د جنګ نه تښتېدونكے ـ

**ترپله** :- (ت+ ر+ پ +لـه) [پ، ه : تر پهلا ، اس مـؤ]درې دوايانې هليلـه ، بليلـه او آملـه چـه سـره يـو كـړې شـي ـدا اكثـر د نـس خُـوږې د پـاره استعمالولې شي ـ

**ترپلے**:- (ت+ ر+ پَ+لے) [آف: پ (قاموس)مف ، مذ ،وا ، ج:ترپلي (مؤ: ترپلې ]هغۀ څيز چي بې ډوله او بې ترتيبه ښنلولے شوے وي ـ

**ترپلے**:- (ت+ ر+ پ +لے )[پ مف ، مذ ، وا ، ترپلي ، (مؤ: ترپلې] زغلېدلے ، بې ترتيبه منډه كړے ـ

**ترپنـــدک** :- (ت+ ر+ پ +ن +د +ک) [آف: پ (قــاموس) ص،مـــذ (مـــؤ ، وا: ترپندكه : ج : ترپندک ) ] هغه ځناور چه بې ډوله تګ كوي ، هغه حيوان چه په ترپكوځي يعني چه هوا رفتار نۀ كوي ـ

**ترپندے**:- (ت+ رَ+ پَ+ن +د ے) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا، ج : ترپندي ] هغه كانړے چه په لړو اُوبو كښې د تېرېدو د پاره ايښودے شوے وي ـ

**ترپنه** :- (ت+ رَ+ پ +نه) [پ حمص ]ټوپ وهنه ـ

**ترپنه**:- (ت+ ر+ پ +نه) [آف: پ (قاموس) حمص ]بې ترتيبه کېدنه ـ

**ترپـول**:- (ت+ ر+ پ +و +ل) [آف: پ (قـاموس) مـص مـت ]يـو شيـز بـې ډولـه طريقې سره وهل ټکول ، درّبول ـ

**ترپـول**:- (ت+ رَ+ پ +و +ل) [پ ـمـص مـت]زغلـول ، منـډه ورکـول ، ترپکـې ورکول ټوپلول ـ

د ژونـدون مـېله تـمامه شوه جنابه
تر پـوري پکښې د خيال سمند په څۀ جناب کاکا خېل

**ترپولې** :- (ت+ ر+ پ +وَ +لې )[آف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : ترپولې] بې ډوله وهلې ټکولې ، درّبولې ـ

**ترپُونکې**:- (ت+ رَ+ پُو +ن +کې ) [آف: پ (قاموس) فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ترپُونکي (مؤ: ترپُونکې)]زغلېدونکې ، ټوپونه وهُونکې ـ

**ترپُونکـې** :- (ت+ ر+ پُـو +ن +کـې ) [آف: پ (قـاموس) فـاع ، مـذ ، وا ، ج : ترپُونکي (مؤ: ترپُونکې)]څۀ شيز بې ډوله طريقې سره نښلوونکې ـ

**ترپونګ**:- (ت+ ر+ پ +وَ +ن +ګ) [آف: پ (قاموس) حمص] و ـــــ ترپونه ـ

**ترپونه**:- (ت+ ر+ پ +و +نه ) [آف: پ (قاموس) حمص ]بې ډولـه وَهنـه ټکونـه ، دربونه ، ترپونګ ـ

**ترپوُونکـې** :- (ت+ ر+ پ +وُو +ن +کـې ) [آف: پ (قـاموس) فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ترپوُونکي ( مؤ : ترپُوونکې ) ] څۀ شيز بې ډولـه طريقې سره ټکوُونکې ، درّبوُونکې ـ

**ترپه** :- (ت+ ر+ په) [پ (خ) ـ اس ، مؤ]ټوپُونه ، غورځانګې ، ګډا نڅا ـ

**ترپهـار**:- (ت+ ر+ پ +هـا +ر) [آف: پ (قـاموس) اس ، صـو ، مـذ ] (۱) ترپـا د سړي د پښو آواز ، ترپې (۲) د څۀ شيز د ټکولو آواز ، دربّا ـ

**ترپې**:- (ت+ رَ+ پَې ) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱)ترپهـار (۲) هغـه اُوښ چه په مزکه خپله پښه په زوره د راخلاصولو عادت وي ـ

**ترپېدل**:- (ت+رَ+پې +د +ل) [پ مص لا]ترپېدل ، ټوپُونه وهل ، په ټوپُونو کېدل

**ترپېـدلې**:- (ت + رَ+ پـې +دَ + لـې ) [آف: پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج : ترپېدلي (مؤ : ترپېدلې ) ]ترپېدلې ، مرغېجن شوې ـ

**ترپېدنګ**:- (ت+ رَ+ پې دَ +ن +ګ) [آف: پ (قاموس) حمص]و- ترپېدنه ـ

**ترپېدنه** :- (ت+ ر+ پې +د +نه ) [آف: پ (قاموس) حمص] تر پېدنګ ، ترپېدۀ ، ترپېدنه ، مرغېجن کېدنه ، ټوپُونه وهنه ـ

**ترپېـدُونکې** :- (ت+ رَ+ پـې +دُو +ن +کـې ) [آف: پ (قـاموس) اس فـاع ، مـذ ، وا ، ج : ترپېدُونکي ، مؤ: ترپېدُونکې] ترپېـدُونکې ، مرغېجن کېدُونکې ، د حلالولو نه پس ټوپونه وهُونکې ـ

**ترپېدۀ**:- (ت+ رَ+ پې+دۀ ) [ آف: پ (قاموس) حمص ] و ـــــ ترپېدنه ـ

**تـرت**:- (ت+ رَ+ ت) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـذ]متروکـه ، تـرټ ، د څرمنـې چابک

**ترُت** :- (ت+ ر+ت) [پ ص، مذ ]تُند ، تېز ، جلت ـ

**ترتاب**:- (ت+ ر+ تا+ب) [ آف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ] غـم ، ارمـان ، افسوس ، چغې سُورې ـ

**کول**:- (آف: اِص ، ارمان کول ، افسوس کول ـ

**په ترتاب تلل**:- اِص ، په ارمان تلل ، چغې سُورې وهل ـ

د سـاقـي د مخ جذبه مې مخ ته بولي
چې دا هسې مېکدې ته په ترتاب ځم خوشحال

**ترتو**:- (ت+ ر+ تَ+ ر ) [ پ :اس ، صو ]د څاڅکو يا د اوښکو د څڅېدو آواز ـ

دا غزل مې په پټې کښې د کشمير په دا سبب دے
چـې مـې اوښـو د غـمونو په ګرېوان کوۀ تر تر بېدل

**ترترلې**:- (ت+ ر+ ت +ړ +لـې )[آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ] يو قسم مارغۀ ، ملا ګک ، سپېرکونډه ، سپېرکونډکه ـ

**ترترے**:- (ت+ ر+ ت +ړے )[پ ـاس ، مذ ، وا ، ج : ترترې (مؤ: ترترۍ) ] هغـه سړے چې په خبرو کښې نښلي ، چاړه ـ

**ترتله**:- (ت+ ر+ ت +له) [پ حرف]ترتل ، همېشه ـ

**ترتـى**:- (ت+ ر+ ت +ى )[آف: پ (قـاموس) اِس ، مـؤ]زړه پـړده ، زوړ څـادر ، د کېږدۍ سُورے ـ

**ترتيب** :- (ت+ ر+ تي +ب )[ع ، اِس ، مـذ ، وا ، ج : ترتيبُونـه ] هرڅيـز پـه خپـل ځاے سمبالونه ، اوړنه ، سمبال ـ

عمارت لکه خطا هسې خطا ځي
په اول ئې چې خطا پرېوځي ترتيب خوشحال خان

**ورکول**:- اِص ، ترتيبول ، سمبالول ، په ترتيب کول ، په خپل ځاے طريقې سره کښېښودل ـ

**په ترتيب سازول**:- اِص ، په ترتيب جوړول ـ

لاهاله حميد کسسکر په محبت ؤ
فرښتو چې ساز ؤ په ترتيب ورو ورو

**په ترتيب کول**:- اِص ، و ـــــترتيب ورکول ـ

**په ترتيب کېدل**:- اِص ، سمبالېدل ، پـه خپـل ځـاے طريقې سره کښېښـودلے کېدل

**ترتيبول**:- (ت+ ر+ تي +بَ +و +ل ) [پ ، مص مت ]ترتيب ورکول ، پـه ترتيب کښېښودل ، په خپل ځاے طريقې سره سمبالول ـ

**ترتيبي** :- (ت+ ر+ تي +بي ) [پ ـاس ، ص ]هغه سړے چه هرڅيز پـه ترتيب او مناسبې طريقې سره په خپل خپل ځاے سمبالوي ـ

**ترتيبـېدل**:- (ت+ ر+ تـي +بـې +د +ل)[پ ، مـص لا]سـمبالېدل ، پـه مناسـب طريقې سره په خپل خپل ځاے کښېښودلے کېدل ـ

**ترتيل**:- (ت+ ر+ تي +ل) [ع ، اِس ، مذ ]ـقرآن شريف پـه مزه مزه صاف صاف قرأت سره وئيل ـ

خو د زړۀ صفائي نۀ په دا څۀ شو
که ظاهر لولې قرآن په ښۀ ترتيل کامګار

**ترټ** :- (ت+ ر+ ټ )[آف: پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــــترت ـ

**ترټـل**:- (ت+ ر+ ټ +ل ) [پ مـص مـت ]رټـل ، شـړل ، کُـوري کـول ، زورول ، کاوړ کول ـ

**ترټلے**:- (ت+ ر+ ټ +لے ) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج :ترټلي (مؤ : ترټلې) ] رټلے شوے ، شړلے شوے ـ

**ترټنګ** :- (ت+ ر+ ټ +ن +ګ )[آف: پ (قاموس) حمص]و ـــــ ترټنه ـ

**ترټنه**:- (ت+ ر+ ټ +نه ) [پ حمص ]ترټنګ ، رټنه ، زورنه ، ملامته ، کاوړ ـ

**ترټونکـې** :- (ت+ ر+ ټـو +ن +کـې ) [پ ،اس فاع،مذ ، وا، ج: تر ټونکي ، (مؤ : ترټُونکې )]رټونکې ، ملامته کوُونکې ، کاوړ کوُونکې ـ

**ترټه** :- (ت+ ر+ ټه )[آف: پ (قاموس) اس ، مؤ]و ـــــ تراټ(۱)

**ترټه** :- (ت+ ر+ټه )[آف: پ (قاموس) اس ، مؤ، وا ، ج : ترټې] و ـــــ تراټ(۲)

**ترټه**:- (ت+ ر+ټه) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ، وا ، ج : ترټې ] و- تراټ (۳)

**ترجـه**:- (ت+ ر+ جـه ) [ آف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ]د ځنـاورو د خـوراک يـؤ

قسم بوټی ـ

**ترچ**:- (ت+ ر+چ)[آف: پ (قاموس) اس ، مذ]انتروشی ، انړی ـ

**وهل** :- (اَن اِص ، ترچل ، انتروشی کول ، انړی کول ـ

**ترچل** :- (ت+ ر + چ +ل )[آف: پ (قاموس) مص ، مت ]ترچ وهل ، انړی کول ، انتروشی کول ـ

**ترچنده**:- (ت+ ر+ چ +ن +دَه) [پ (گن)ص ـ]په ترخ ـ

**ترچنه** :- (ت+ ر+ چ +نه ) [آف: پ (قاموس) حمص]ـانتروشی کونه ، انړی کونه

**ترچُونکی** :- (ت+ ر+ چو +ن +کی )[آف: پ (قاموس) اس فاع ، مذ ، وا ، ج : ترچونکي ـ(مؤ: ترچُونکې )]انړی کوُونکی ، انتروشی کوُونکی ـ

**ترچه** :- (ت+ رَ+ چّه ) [آف: پ (قاموس) اس صو ، مذ]د انتروشي یا انړي آواز ـ

**ترچی** :- (ت+ رَ+ چی ) [ آف: پ (قاموس) اس ، مذ ]د بیا بیا انړي یا اَنتروُشي کولو آواز ـ

**ترچېدل**:- (ت+ ر+چې +د +ل ) [آف: پ (قاموس) مص]انړی کول ، اَنتروشی کول ـ

**ترچېدلی**:- (ت+ ر+ چې +دَ +لی )[آف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ترچېدل (مؤ: ترچېدلې ]ـهغه سړی چه انتروُشی یا انړی ئې کړی وي ـ

**ترچېدنگ**:- (ت+ ر+ چې +دَ +ن +گ )[آف: پ (قاموس) حمص] و ــــ ترچېدنه ـ

**ترچېدنه**:- (ت+ ر+ چې +د + نه ) [آف: پ (قاموس) حمص ] انړی کونه ، انتروُشی کونه ، ترچېدهٔ ترچېدنگ ـ

**ترچېدُونکی**:- (ت+ ر+ چې +دُو +ن +کی ) [آف: پ (قاموس) اس فاع، مذ ، وا ، ج: ترچېدونکي (مؤ: ترچېدُونکې )]انړی کوُونکی انتروشی کوُونکی ـ

**ترچېدهٔ**:- (ت+ ر+ چې+دهٔ ) [آف: پ (قاموس) حمص]و ــــ ترچېدنه ـ

**ترخ**:- (ت+ ر+تس) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ]ـ مینځ ، ضمن ـ

**په ترخ کښې کار کول**:- (اَف ) [اص ، څهٔ کار ضمنًا کول ]ـ

**ترخ** :- (ت+ ر+تس) [پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا : ترخه ، ج: ترخې)] (۱) په ځنگ ، ځنگزن ، په یو طرف کوږ ـ(۲)ځنگ ، ډډه (۳) نارامي ـ

تل دې نرگس دي خو په ترخ دي نهٔ وي
مشه بیمار دې د چشمان گلونه حمزه شنواري

**ترخ کول** :- اص ، ځنگ کول ، ډډه کول ـ

**په ترخ چلېدل**:- اص ، نارامي کول ، ضد کول ، گُذاره نهٔ کول ـ

**په ترخ کتل**:- اص ـ (۱) په ځنگ کتل ، کوږ کتل ـ (۲) په قهر او غُصه کتل ـ

**په ترخ کېدل**:- اص ، یو اړخ ته کېدل ، ډډه کول ، یو لُوري ته کږېدل یعني مخالفت کول ـ

**ترخ**:- (ت+ ر+ تس ) [ آف: پ (قاموس) اس ، مذ ]ـ (۱) قهر ، غُصه ـ (۲) د غرهٔ لمن یا اړخ ـ

**په ترخ ترخ کښې تلل**:- (ظفر) اص ، د غرهٔ په اړخ اړخ کښې تلل ـ

**ترخکون** :- (ت+ ر+ تس +کُو +ن )[پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا : ترخکونه ، ج: ترخکونې )]خوندناک ، مزېدار ، نمکین ، ترسکوُن ـ

**ترخکونول**:- (ت+ ر+ تس +کو +ن +و+ ل) [پ ،مص مت ]ـترخکون کول ، مزېدار کول ، خوند ناک کول ، ترسکنول ـ

**ترخکوُنونه**:- (ت+ ر+ تسي +کو +ن +و +نه) [پ : حمص ] خوندناک کونه ، مزېدار کونه ، نمکین کونه ، ترسکنونه ـ

**ترخکوونکی** :- (ت+ ر+ تس +کو +ن +وُو +ن +کی ) [پ اس فاع ، مذ ، وا ، ج : ترخکوُنــوونکي (مـؤ : ترخکوُنــوُونکې)خوندنــاک کــوُونکی ، مزېدار کوُونکی ، نمکین ، کوُونکی ، ترسکنُوونکی ـ

**ترخکوُنېدل**:- (ت+ ر+ تس +کو +نې +د +ل )[پ ـ مص لا]خوندناک کېدل ، مزېدار کېدل ، نمکین کېدل ، ترسکنُېدل ـ

**ترخکونېدنه** :- (ت+ ر+ تس +کو +نې +د +نه) [پ ـحمص] خوندناک کېدنه ، مزېدار کېدنه ، نمکین کېدنه ، ترسکنُېدنه ـ

**تر خکونېدُونکی** :- (ت+ ر+ تس کو+ نې +دُو +ن +کی ) [پ ، مف ، مذ ، وا ج ، ترخکوُنېدونکي (مؤ : ترخکوُنېدُونکې) ] خوند ناک کېدُونکی ، مزېدار کېدُونکی ، نمکین کېدُونکی ، ترسکنېدُونکی ـ

**ترخنگ**:- (ت+ ر+ تس +ن +گ ) [پ :حرف]تر اَړخ ، په خوا کښې ، ورسره ، په غېږ کښې ـ

**ترخو**:- (ت+ ر+ تسو ) [پ :حرف]ترکله ، ترکومه ، ترڅهٔ وخت پورې ـ

**ترحد په هُورته**:- (ت+ ر+ ح +د +په +هو +ر + ته ) [پ ـص ] د حد نه زیات ، ډېر زیات ـ

**ترخ**:- (ت+ ر+ خ )[پ ـاس ، مذ ، وا ج : ترخُونه ] (۱) تخرگ ، بغل (۲) اړخ

**په ترخ کول** :- اص ، تخرگ ته کول ، په ترخ کښې اُوچتول ،څهٔ څیز بې اجازته اخستل په قت کول ـ

**بوبول**:- (ظفر ) اص ، ځان ناراضه کول ، مرور کېدل ـ

**ترخ**:- (ت+ رَ+ خ) [ آف: پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج : ترخُونه ] د اُوبو سر ، ورخ ، منبع ـ

**اوبهٔ له ترخه اوښتل**:- (اَف) مح ـاوبهٔ له ورخه اوړېدل ، د کار موقع د لاس نه وتل

**ترخان** :- (ت+ رَ+ خا +ن ) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ] (۱)هغه سړی چه د قلنگ او مالیه ئې نه معاف وي (۲) د لرگي چینجی ـ

**ترخځ** :- (ت+ رَ+ خ +دز) [پ ـ اس ، مـؤ ، وا ، ج : ترخځې]ترخز ، پـه خت ، قمیص کښې هغه ټوټه چه د تن سره لگولی شي ـ

**ترخځې وراچول**:- اص ، د خت ،قمیص د تن سره نورې ټوټې لگول ، د یو څیز سره بل څیز پېوندول ـ

**ترخز** :- (ت+ رَ+ خ +ز) [پ (ظفر) اس ، مذ] (۱) تربنځ ، د ترکانۍ آله ـ (۲) په قمیص کښې ټوټه ـ

**ترخزې وراچول**:- اص ، ترخځې وراچول ، د قمیص د تن سره نورې ټکرې لگول

**ترخسول**:- (ت+ رَ+ خ +س +و +ل) [آف: پ (قاموس) مص مت]نوې کپړه په راکښلو سره شیرې کول ـ

**ترخسولی** :- (ت+ رَ+ خ +س +وَ +لی) [آف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ترخسولي (مؤ: ترخسولې )]هغه کپړه چه په راکښلو سره شیرې شوې وي ـ

**ترخسونگ** :- (ت+ رَ+ خ +س +و +ن +گ ) [آف: پ (قاموس) حمص]و- ترخسونه ـ

**ترخسونه** :- (ت+ رَ+ خ +س +و +نه ) [آف: پ (قاموس) حمص]ـ ترخسونگ ، په راکښلو سره څهٔ نرم څیز یا څرمن وغېره لرې کول یا شلول ـ

**ترخسوونکی**:- (ت+ رَ+ خ +س +وُو +ن +کی )[آف: پ (قاموس) اس ، فاع ، مذ ، واج : ترخسوُونکي ـ(مؤ:ترخسؤونکې )]ـپه راکښلو سره کپړه یا جامه شیرې کوُونکی ـ

**ترخسېدل**:- (ت+ رَ+ خ +سې +د +ل) [آف: پ (قاموس) اس ، مص لا] په

راکښلو سره کېږه لته یا ځرمن وغېره ځیرې کېدل۔

**ترخسپدلے**:- (ت+ رَ+خ +سپ +دَ +لے ) [آف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : ترسپدلي (مؤ : ترخسپدلې ]کېږه لته یا ځرمن وغېره چه په راکښلو سره ځیرې شوے یا شلېدلے وي۔

**ترخسـپدنګ**:- (ت+ رَ+خ سـپ +دَ +ن +ګ) [آف: پ (قـاموس) حمـص]و۔ ترخسپدنه

**ترخسپدنه**:- (ت+ رَ+خ +سپ +د +نـه ) [آف: پ (قـاموس) حمص ] ترخسـپدۀ ، ترخسپدنګ ، په راکښلو سره ځیرې کېدنه یا شلېدنه ۔

**ترخسپدُونکے**:- (ت+ رَ+خ +سپ +دُو +ن +کے ) [آف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ترخسـپدُونکي ، مؤترخپـدُونکې )]پـه راکښـلو سـره ځیـرې کېدُونکے یا شلېدُونکے ۔

**ترخسپدۀ** :- (ت+ رَ+خ +سپ +دۀ) [آف: پ (قاموس) حمص ]و - ترخسپدنه ۔

**ترخوبه** :- (ت+ رَ+خو +به ) [پ: اس ، مؤ]ترخې اُوبۀ ۔

**ترخوبې**:- (ت+ رَ+خو +بې) [پ (ظفر) اس ، مذ] د ترخو اُوبو تـلاؤ ، د مالګینو اُوبو تالاب ۔هغه ځاے چه اُوبۀ ئې ترخې وي۔

نور شراب ورته اوبۀ د ترخوبې وي

چې ئې مست وي د لبانو په شراب          خوشحال خان

**ترخـــه**:- (ت+ رَ+خــه) [آف: پ (قــاموس) اس ، مـؤ، وا ج : ترخــې]۔چــاؤد ، چاؤدن ، شګاف ۔

**ترخه**:- (ت+ رَ+خه) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ، وا ج : ترخې]۔یو تـریخ بُوټے چه په دارو کښې استعمالېږي ۔

**ترخۀ**:- (ت+ رَ+خه) [پ ۔ص ،مذ ،ج ](۱)د تریخ د جمعې صیغه ۔(۲) اَف: سرۀ او تورمرچکي ۔

**کول**:- اِص ، څۀ څیز تریخول ، مرچکي پکښې زیاتول ۔

**کېدل** :- اِص ،څۀ څیز تریخېدل ، مرچکي پکښې زیاتېدل ۔

**ترخه**:- (ت+ رَ+خه) [پ ، ص ،مؤ، وا ، ج: ترخې ]د تریخ مؤنث صیغه

**خبره** :- اِص ، داسې خبره چه په طبیعت بده لګي ، سخته خبره ۔

**ترخه تورۍ**:- (ت+ رَ+خه +تو +ر +ۍ) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ] یو قسم ترکاري ، کربله ۔

**ترخه غوُټـه**:- (ت+ رَ+خـه +غـو+ ټـه ) [ آف: پ (قـاموس) اِس ، مـؤ، وا ، ج: ترخې غوټې ] پیاز ۔

**ترخه ککوړه** :- (ت+ رَ+خه +ک +کُو +ړه) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ، وا : ج : ترخې ککُوړې ] مړغونے ، ترخه کاکوره ۔

**ترخي**:-(ت+ رَ+خه +یي ) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ]یو قسم بُوټے ۔

**ترخي** :- (ت+ رَ+خي) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ]سخت ژمے ، زیاته سړزي ۔

**ترخي ترخي** :- (ت+ رَ+خي +تَ+ر+خي) [آف: پ (قاموس) ص] پړق پړق ، چاؤد چاؤد ، درز درز ۔

**ترخي ترخي چاودل**:- (اَف) اِص ، پړق پړق چاؤدل۔

**ترخې**:- (ت+ رَ+خې) [پ ص ، مؤ ، ج ]د ترخه د جمعې صیغه ۔

**کول**:- اِص ، تریخېدل ۔

**ترخې اُوبۀ**:- (ترخې+ اوَ+ بـه) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ]سـمندر ، تـریخ دریاب ۔

**ترخېـدل**:- (ت+ ر+ خـې +د +ل) [پ ، مـص لا ] تـریخ کېــدل ، تریخېــدل ، خوند بدلېدل۔

**تـــرَدّد** :- (ت+ رَ+د +د+د ) [ع ۔اِس ۔مـذ ]۔(۱)دوجــالي ، تذبــذب، وســواس (۲) محنت کوښښ۔

شاه زلمي تورې نېزې خورې تردد کا

پـه بـولـېـښـنا د تورې تېنتې تېزارتې          خوشحال خان

**کول**:- اِص (۱)وسواس کول (۲) محنت او کوښښ کول۔

کـه هـزار رنـګه تـالاش او تردد کړې

د قسمت شوې به نۀ کړې زیات او کم          رحمٰن بابا

**ترړه**:- (ت+ر+ ړه) [پ (ظفر) اس ، مؤ، ج : ترړې]یؤ قسم وابنۀ ، کبل ۔

چې ئې خولۀ حیات چشمې سره کوهے ؤ

تـوکـېدۀ بـه تـرې چـاپـېر ترړې د خط          علي خان

**ترړه**:- (ت+ ر+ ړَه) [پ ،اِس ، مؤ ، وا ، ج: ترړې]منډه ، زغل ۔

**ترړې وهل** :- اِص+ منډې وهل زغلېدل ۔

**ترړۍ**:- (ت+ ر+ ړ +ۍ ) [پ ، اس ، مؤ]د خړرنګ یوه مرغۍ۔

د ترړۍ چې د خوارۍ ساعت راشي

د هـلـکو پـه پـرکه کښېني په ځیره          خوشحال

**ترړي** :- (ت+ رَ+ ړي ) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ، ج ]دا هاړ په سخته ګرمۍ کښې نرے اورئي ۔

**ترزنے** :- (ت+ ر+ز +نـے ) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـذ]هغـۀ پـه ببعـه اخسـتے شوے ځاروے چه اول ځل کورته راوستے شي او د کور سره بلد نۀ وي نا رُوږد دے ځاروے ۔

**ترږمۍ**:- (ت+ رَ+ ژ +م +ۍ یـا ت +رَ +ګ +م +ۍ) [پ ،اس ص، مـؤ] ترورِمـۍ ، تراونګے ، د شپې تیارۀ چه سپوږمۍ نۀ وي راختې ۔

**کېدل**:- اِص ، تیارۀ کېدل ، د شپې سپوږمۍ نۀ راختل ۔

**ترس/ ترخ** :- (ت+ رَ+س ) [پ (ظفر) اس ، مذ]ترخ ، څنګ ، اَړخ ۔

**تـرس**:- (ت+ ر+ س) [آف: (قـاموس) اس ، مـذ ]۔ (۱) تـرخ ، اَړخ۔ (۲) کـوږ یـو خوا ته کوږ۔

**ترس** :- (ت+ رَ+س ) [پ ۔اس ، مذ](۱) ویره ، ډار۔ (۲)رحم شفقت ۔

له رقیبه زما هېڅ تر ویره نۀ شي

محـمد غـوندې مرسل زما پناه          خواجه محمد بنګش

د خواجه محمد په حال ئې ترس نۀ شي

کــه پــه مــخ باندې ئې اوښې لاړه اوکا

**کول** :- اِص (۱) ویرېدل ، ډارېدل ۔ (۲) رحم کول ، شفقت کول ۔

**په چا ترس خوړل** :- اِص ، په چا رحم کول ، په چا د خداے تعالی د ویرې شفقت کول۔

**ترسا**:- (تَ+ ر+سا) [افا ۔اس ، مذ]نصراني ، عیسائي ، آتش پرست ۔

عاشقي په اسلام راولي ترسا

پارسائي که ګډه وډه د پارسا          حمید

**ترسره**:- (ت+ ر+ سَ +ره) [پ ۔ص ](۱) تر آخره ۔پوره (۲) ترسر پورې۔

**ترسره کول**:- اِص ، پوره کول ، سرته رسول ۔

**ترسره کېدل**:- پوره کېدل ، سرته رسول کېدل ۔

**ترسرے / سرترے**:- (تَ+ ر+ س + رَے ) [پ۔ اس ، مذ ، وا ، ج: ترسري ] (۱) ترسـېرے ، هغـه پـرے چـه د ځـاروې د اُوربـوز نـه تـاؤ دي (۲) هغـه داغونه او نخښې چه د مرض په وجه په بدن او مخ پېدا شي ۔

**ترسرې کېدل** :- اِص ، په مخ او بدن د بیمارۍ له کبله داغونه جوړېدل۔

**ترسرې مخے** :- (تَ+ ر+ س +ري +م +خے) [پ۔اس ص ]مذ ، وا ، ج: ترسري مخي ، (صؤ: ترسري مخے ) هغه څوک چه پـه مـخ ئې د ترسري داغوُنه

موجود وي۔

**ترسګُن** :- (ت+ رَ+ س +کُ +ن) [اِپ ، ص مذ (مؤ ، وا: ترسکنُه ج: ترسګُنې ] ترسکون ، ترش ، خوند ناک ، چه مرچ مالګه پر لګېدلې وي۔

**ترسګُول**:- (ت+ ر+ س +ک +ن +و +ل) [اِپ مص مت ] (۱) پـه مـرچ مسـاله او مالګه څۀ څیز خوند ناک کول ، په پخکړي کښې ترشي پېدا کول۔ (۲) څـۀ خبـره یـا واقعـه کښـې د خونـد پېـدا کولـو د پـاره د ځانـه خبـرې ورګډول

**ترسګُونه** :- (ت+ ر+ س +ک +ن +و +نـه) (۱) پـه مـرچ مسـاله او مالګـه څـۀ څیـز خونـد ناک کونـه ، پـه پخکـړي کښـې ترشـي پېـدا کونـه۔ (۲) څـۀ خبـره یـا واقعه کښې د خوند پېدا کولو د پاره د ځانه خبرې ورګډونه۔

**ترسګُووُنکے**:- (ت+ ر+ س +ک +ن +وُو +ن +کے) [اِپ ، اس ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج : ترسکنُوونکي ، (مؤ : ترسـکنُوونکې] (۱) خونـده ور کـوُونکے ـد څـۀ څیـز خوند زیاتولو د پاره په هغۀ مالګه مساله لګوُونکے (۲) په څـۀ خبـره کښـې خوند پېدا کوُونکے۔

**ترسګُنېدل** :- (ت+ ر+ س +ک +نـې +د +ل) [اِپ۔ مـص لا] خونـده ور کېـدل۔څـۀ پخکړے په مرچ مساله برابرېدل ، نمکین کېدل۔

**ترسـګُنېدنه** :- (ت+ ر+ س +ک +نـې +د +نـه) [اِپ۔حمـص ] خونـده ور کېدنـه ، مالګین کېدنه۔

**ترسګُنېدُونکے** :- (ت+ ر+ س +کُ +نې +دُو +ن +کے) [اِپ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : ترسکنېدونکي (مـؤ : تـر سـکنُېدُونکې] خوندَور کېـدُونکے ، خونـد نـاک کېدُونکے ، مالګین کېدُونکے۔

**ترسـکُون** :- (ت+ ر+ س +کـو +ن) [اِپ ، ص ، مـذ (مـؤ ، دا : ترسـکوُنه ، ج: ترسکُونې )]۔ و ـــــ ترسګُن۔

**ترسند** :- (ت+ ر+ س +ن +د) [آف: پ (قـاموس) ص، مذ (مؤ ، وا: ترسنده ، ج : ترسندې) ] په څنګ ، په اړخ ، په ډډه ، کوږ ،څنګزن۔

**کول**:- (اَف) اِص ، په څنګ کول ، په ډډه کول ، په اړخ کول ، څنګزن کول۔

**کېـدل** :- (اَف) اص ,پــه څنــګ ، کېــدل ، پــه ډډه کېــدل ، پــه اَړخ کېــدل ، څنګزن کېدل۔

**ترســند تــوب**:- (ت+ ر+ س +ن +د +تـو +ب) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ]۔ترسندوالے ، په یو اړخ والے ، په ډډه والے ، په څنګ والے۔

**ترسندوالے** :- (ت+ ر+ س +ن +د +وا +لے) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ] و ـــــــ ترسند توب۔

**ترسندول** :- (ت+ ر+ س +ن +و +ل) [آف: پ (قاموس) مص مت ] په څنګ کول ، په ډډه کول ، په اَړخ کول ، څنګزن کول۔

**ترسـندونه**:- (ت+ ر+ س +ن +د +و +نـه ) [آف: پ (قـاموس) حمـص ] پـه څنـګ کونه ، په ډډه کونه ، په اړخ کونه ، څنګزن کونه۔

**ترسندوُونکے**:- (ت+ ر+ س +ن +د +وو +ن +کے ) [آف: پ (قاموس) فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ترسـندُوونکي (مـؤ : ترسـندوُونکې) ] پـه اَړخ کـوُونکے ، پـه ډډه کوُونکے ، په څنګ کوُونکے، څنګزن کوُونکے۔

**ترسـندېدل** :- (ت+ ر+ س +ن +دې +د+ل) [آف: پ (قـاموس) مـص لا] ترسـند کېدل ، په ډډه کېدل ، یو اَړخ کېدل ، په څنګ کېدل ، څنګزن کېدل۔

**ترسـندېدنه**:- (ت+ ر+ س +ن+دې +د+نـه) [آف: پ (قـاموس) حمـص ] پـه اَړخ کېدنه ، په ډډه کېدنه ، په څنګ کېدنه ، څنګزن والے۔

**ترسـندېدُونکي**:- (ت+ ر+ س +ن +دې +دُو+ن +کـے) [آف: پ (قـاموس) فـاع، مذ ، وا ، ج : ترسندېدوُنکي (مؤ: ترسندېدُونکې) ] په یـو اَړخ کېـدُونکے ، په ډډه کېدُونکے ، په څنګ کېدُونکے ، څنګزن کېدُونکے۔

**ترسول** :- (ت+ ر+ سَ +و+ل) [اِپ۔مص مت ] (۱) یَرول ، ډارول (۲) چاتـه څـۀ څیـز نۀ ورکول او خواهش ئې ورته پېدا کول۔

**ترسونه** :- (ت+ ر+ س +و +نه) [اِپ۔حمص ] (۱) یرونه ، ډارونه (۲) چاتـه څـۀ څیـز نۀ ورکونه او خواهش ئې ورته پېدا کونه (۳) تکلیف او کړاؤ ورکونه۔

**ترســــوُونکے** :- (ت+ ر+ س +وُو +ن +کـــے) [اِپ ،اِس فـــاع، مـــذ ، وا ، ج : ترسوُونکي ، (مؤ: ترسوُونکې ] (۱) یروُونکے، ډاروُونکے (۲) څـۀ څیـز نـۀ ورکـوُونکے او هسـې خـواهش ورتـه پېـدا کـوُونکے (۳) تکلیـف او کـړاؤ ورکوُونکے۔

**ترسـېدل** :- (ت+ ر+ سـے +د +ل) [اِپ۔مـص لا] (۱) رحـم راتلـل ،زړۀ سـول (۲) یرېدل ، ډارېدل (۳) څۀ څیز ته زړۀ کېدل۔

**ترسېدنه** :- (ت+ ر+ سې +د +نه) [اِپ۔حمص ] (۱) یرېدنه، ډارېدنه ، ترسېدۀ ، (۲) څۀ څیز ته خواهش پېدا کېدنه (۳) زیات کړاؤ او تکلیف تېرونه۔

**ترسېدُونکے**:- (ت+ ر+ سې +وُو +کے) [اِپ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : ترسـېدُونکي (مـؤ: ترسـېدُونکې] (۱) یرېـدُونکے ، ډارېـدُونکے (۲) څـۀ څیزتـه خـواهش لروُنکے (۳) ډېر تکلیف او کړاؤ موندُونکے۔

**ترسېدۀ** :- (ت+ ر+ سې +دۀ) [اِپ۔حمص] ـــــ ترسېدنه۔

**ترســـېړے**:- (ت+ ر+ ســـې+ رَے) [اِپ۔اِس ، مـــذ ، وا ، ج : ترســـېړي ]و ـــــ ترسرے۔

**ترشا**:- (ت+ ر+ شا) [اِپ۔ص] شاته ، وروستو ، په څټ۔

په زړۀ یاد لره دا اور چې دې رابل کړو
یـو تـر شا نظر دې نـۀ کـړ تـېرېدلې خوشحال خان

**پاته کېدل** :- اِص ، وروستو ، پاتې کېدل ، ترشا پاتېدل۔

**پاتېدل** :- (اَف) اِص و ــــــــــ ترشاپاته کېدل۔

**کول**:- اِص (۱) شاته کول ، وروستو کول (۲) هېرول۔

**کېدل**:- اِص (۱) شانه کېدل ، وروستو کېدل (۲) هېرېدل۔

**ترښځ**:- (ت+ ر+ ش +دز+یات+ر+خ +دز) [اِپ۔اِس ، مؤ ، وا ، ج : ترښځې ] و ـــــــ تخځ۔

**ترښـځې**:- (ت+ ر+ ښ +دزې) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـذ] یوقسـم کشـیده کاري چه په لستوڼو او ګرېوان کولې شي۔

**ترښکه** :- (ت+ ر+ ښ +که) [آف: پ (قـاموس) اس ، مؤ، وا ، ج: ترښکې ] نرۍ لاره

**ترغـــاړے**:- (ت+ ر+ غـــا +ړَے )[آف: پ (قـــاموس) اس ، ص، مـــذ ، وا ، ج: ترغاړي (مؤ: ترغاړې )]تور غاړے ګډ ، هغـه ګډ چه غاړه ئې توره وه ، تور غاړے۔

**ترغاړے** :- (ت+ ر+ غا +ړے) [اِپ۔ص ] (۱)غاړے پورې (۲) په غاړه په ذمه (۳) غاړه کښې اَچولے۔

**کول**:- اِص (۱)په غاړه کول ، په ذمه کول ،(۲) غاړه کښې اچول ، اغوستل۔

**کېدل**:- اِص (۱) پـه غـاړه کېـدل ، پـه ذمـه کېـدل (۲) غـاړه کښـې اَچول کېـدل ، اغوَستل کېدل۔

**وتل** :- اِص ، یو بل ته غاړه ورکول۔

**ترغاک**:- (ت+ ر+ غـا +ک ) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ] (۱) سـخته سیلۍ او باران ، زُول (۲) شاړه مزکه۔

**ترغچي** :- (ت+ ر+ غ+چي) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ]د جینکو یو قسم لوبه۔

**ترغلونے** :- (ت+ ر+ غ +لُو +نے) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ]یو قسم بیماري چه

د زناناؤ او ښځارو په تو کښې پيدا کيږي۔

**ترغـوړے** :- (ت+ ر+ غ +وَ + ړے) [آف: پ (قـاموس) اس ، ص، مـذ ، دا ، ج: ترغوړي (مؤ ، تر غوړي )]تور غوړے ، **هغه ګړ چه غوړونه ئې تور وي**۔

**ترغُونے**:- (ت+ ر+ غ +و+نے) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : ترغُوني ، (مؤ : تر غُونې )] لرغُونے ، د ډير وخت ، پخوانے زوړ۔

**ترغُونے**:- (ت+ ر+ غُو +نے ) [آف: پ (قـاموس) اس ، مؤ ] د مانښام تيارهٔ ، كه شان تيارهٔ۔

**کېدل** :- (آف) اص ، مانښام کېدل ، لړه تيارهٔ کېدل۔

**ترغه**:- (ت+ ر+ غَه ) [پ۔ص ]تالا ، لُوټ ، نوستلے۔

**کول** :- اص ،تالاکول ، لُوټ کول ، نوستل۔

**کېدل**:- اص ، تالاکېدل ، لُوټ کېدل ، نوستلے کېدل۔

**ترغيـب** :- (ت+ ر+ غـي+ ب) [ع، اِس ، مـذ ، وا ، ج : ترغيبُونـه ] (۱) رغبـت ، خوښه ، (۲) لمسه۔

فــلاســفــه مـعـتـزلـه وارهٔ ګـمـراه دي
چې بې شرعې په خپل رائے کاندي ترغيب　　　خوشحال

**وركول**:- اص ، لمسول ، په يو كارمائله كول۔

**ترغې ترغې**:- (ت+ ر+ غې +تَ+ر +غې ) [پ ، ص ] تالاترغه ، لَت پـه لت ، نوستلے ګډوډ۔

**کول**:- اص ، تالاترغه کول ، لت پت کول ، ګډوډ کول۔

**کېدل** :- اص ، تالاترغه کېدل ، لت پت کېدل ، ګډده کېدل۔

**ترقــي**:- (ت+ ر+ ق +قــي) [ع ، اِس ، مــؤ ، وا ، ج: ترقيــاتي] (۱) زيــاتوب ، زياتوالے
(۲) د عهدې اُوچتوالے۔

نۀ ده کتلې تا رڼا د ترقي د مشال
د تنزل تورو تيارو نه لاوتلے نۀ ئې　　　طاهر کلاچوي

**کول** :- اص (۱) زياتېدل ، (۲) عهده اُوچتېدل۔

**ورکول**:- اص (۱) عهده وراوچتول (۲) ځۀ ځيزښۀ معيار ته رسول ښۀ کول۔

چېرې نۀ وي چې اے ياره چې په خلقو کښې رسوا شي
خـدا ے دې لاتــرقــي ورکــه کــه زمــونږه په دعا شي　(خواجه محمد)

**په ترقي کېدل**:- اص ، زياتېدل ، معيار اوچتېدل۔

**تـرک** :- (ت+ ر+ ک ) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ]د مرغـو د نيولـو د پـاره يـو قسم پرکه يا لُومه۔

**ترک** :- (ت+ ر+ ک) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ](۱) چاؤد ، درز (۲) د چاؤدلو آواز ، ترک ، (۳) د بُوټي تبغي راوتل ، (۴) يو قسم نقش چه د کمبلې يا شړۍ په پلوُونو کولے شي۔

چـې پندونه راکوي په توک د مينې
زۀ دا هـسې خـبر خواه ګڼم بـدخواه　　　حميد

**کول** :- (آف) اص (۱) چاؤدل ، (۲) د چاؤدلو آواز کول ، ترک کول ، (۳) د بُوټي تبغے راوَتل ،(۴)د کمبلې يا شړۍ په پلوُو نقش کول۔

**کېدل**:- (آف) اص ،(۱) چاؤدېدل (۲) د چاؤدلو آواز کېدل ، ترک کېدل ، (۳) د بُوټي تبغے راوتل ، (۴) د کمبلې يا شړۍ په پلوُونو نقش کېدل۔

**وهل** :- (آف) اص ، وابنۀ وغېره ، پيدا کېدل ، شينکے کېدل۔

**ترک**:- (ت+ ر+ ک) [ع ۔ اِس ، مذ] پرېښودنه۔

**کول** :- اِص (۱) پرېښودل ، (۲) قضا کول۔

**ترک کېدل**:- اص (۱) پاتې کېدل ، (۲) قضا کېدل۔

**تُـرک**:- (ت+ ر+ ک) [اس ، صـعر ، مـذ ، وا ، ج: تُرکـان (مـؤ ، وا: تُرکـه ، ج: ترکې)] (۱)د ترکستان اُوسېدُونکے ، تُرکي (۲) محبوب ،آشنا ، مؤ ، وا: مؤ ، ج

چـې دستور د وفا نۀ کا تُرکه چُوچ
بـې هوده ورپسې مه کړه ژړا پُوچ　　　بېدل
دا د تـــرکو د مشکينو زلفو تور دي
چـې وګـړے پرې کوي ګمان د مشکو　　　حميد

**ترکا** :- (ت+ ر+ کا ) [آف: پ (قاموس) اس ، صو، مذ] (۱) د چاؤدو مسلسل آواز ، ترکا (۲) د آس وغېره د پښو آواز۔

**ترکاڼ**:- (ت+ ر+ کا+ن +ړ) [پ۔اس ، مذ ، وا ، ج : ترکاڼان ، (مؤ ، وا: ترکاڼه ، ج: ترکاڼانې)] **هغه څوک چه د لرګي کارکوي** ، اُوستکار ، پش۔

**ترکاڼک** :- (ت+ ر+ کا+ن +ړ +ک) [پ۔اس ، مذ] ټکټکانړے ، ټکټکے ، يو قسم برګ شان مارغۀ چه په خپله منښوکه د وُنو لرګي ټکوي۔

**ترکاڼي**:- (ت+ ر+ کا+ن +ړي) [پ۔ اس ، مؤ]د ترکاڼ کار ، د ايوې وغېره د جوړولو کار ، اوستکاري ، پشتوب۔

**کـول**:- اص ، د ترکـاڼ کـار کـول ، دا يـوې وغېـره د جوړولـو کـار کـول ، اُوستکاري کول ، پشتوب کول۔

**تــرکښ**:- (ت+ ر+ ک +ش يـا کَ+خ) [پ ، فـا : تـرکش ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: ترکښونه ]هغه کڅوړه چه غشي پکښې وي۔

ځـکه مـا لـکه باڼۀ په ستر ګو واخست
چې ويشتلے ئې د خاص ترکښ په تېر يم　　　کاظم خان شيدا

**ترکلـه**:- (ت+ ر+ ک +لـه ) [پ ، کلمـه ]ترخـو ، کلـه پـورې ، ترکُومـه ، څـومره وخت پورې۔

**ترکڼ**:- (ت+ ر+ +ن + ړ) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ] ترکاڼ ، کاريګر ، پش۔

**ترکڼکے**:- (ت+ ر+ ک +ن +ړ +کے) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـذ] د مچـو غـنې هغه بچوے چه آواز ترې پيدا کيږي۔

**ترکوبره** :- (تر+ کو+ بَ+ره) [آف: پ (قاموس) کلمه ]زيات،کافي۔

**ترکـــودے**:- (تـــر + کـــو+ دَ ے ) [آف: پ (قـــاموس) اس ، مـــذ ] بُـــوټے ، راټوکېدُونکے شينکے۔

**ترکول** :- (ت+ ر+ کَ+وَ +ل) [پ (ب ، خ) مص مت ]د چا غوښې تـه اشتها پيدا کول ، د چا پـه مخ کښـې د غوښـې خبرې کول چه د هغۀ ورتـه پـه خولـۀ کښې اوبۀ راشي۔

**ترکول** :- (ت+ ر+ ک +و + ل) [پ (ظفر) مص مت ]په چابک يـا لښتـه شړقول ، په لښته وهلو شين اچول۔

**ترکُومه**:- (تر+ کُو+ مه ) [پ ، کلمه ]و ــــــــــ ترکله۔

**ترکونګ** :- (تر+ کَ+ و +ن +ګ) [آف: پ (قاموس) حمص ] و ــترکونه۔

**ترکوُونکے**:- (ت+ ر+ کَ +وُو +ن +کے) [آف: پ (قـاموس) اس ، فـاع ، مذ ، وا ، ج : ترکوُونکي ، (مؤ ، دا : ترکوُونکې )]په لښته يا چابک وهُونکے۔

**تـر کوُونکے** :- (ت+ ر+ کَ +وُو +ن +کے) [پ (ب۔خ) اِس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: تـر کوُونکي (مؤ ، وا: ترکوُونکې)]د چا غوښې ته خواهشپېدا کوُونکے۔

**ترکونه** :- (ت+ ر+ کَ +و+ نـه ) [آف: پ (قـاموس) حمـص ] پـه لښتـه يـا چابـک شړقونه۔

**ترکونـه**:- (ت+ ر+ کَ +و +نـه ) [پ (ب ، خ ) حمـص ] د چـا غوښـې تـه خـواهش پيدا کونه۔

**ترکه** :- (ت+ ر+ که) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : ترکې] نانځکه ، ناوکې ، نانزکه ، ګوډۍ ، نینځکه ، لُوزکه ـ

**ترکـه** :- (ت+ ر+ کـه) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج : ترکـې] د ونـې نازکه څانګه ـ

**ترکهار**:- (ت+ ر+ کَ +ها +ر) [آف: پ (قاموس) اس ، صو]د اس د پښو آواز ، ټپهار ، د لښتې یا چابک د شرق آواز ، ترکهارې

**کول**:- اص ، د اس د پښو آواز یا ټپهار ، د لښتې یاچابک شرکا ـ

**کېدل**:- اص ، د آس د پښو ټپهار کېدل ، د چابک یا لښتې شرکا کېدل ـ

**ترکهـارے** :- (ت+ ر+ کَ +هـا +رَے) [آف: پ (قـاموس) اس ، صـو ]و ــــ ترکهار ـ

**ترکې** :- (ت+ ر+ کَ +ی) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) خراب شوي او ترش پی ـ /ے (۲) یو قسم مرغۍ ـ

**ترکۍ**:- (ت+ ر+ ک +ي) [آف: پ (قـاموس) اس ، مؤ] (۱) یو قسم شینکے چه دانې ئې خوړلې شي ، (۲) هغه تورې شان دانې چه د غنمو سره ګډېږي ، تُورکے ـ

**ترکے** :- (ت+ ر+ کَے) [پ ـ اس ، مذ ، وا ، ج : ترکي ، (مؤ ، وا : ترکۍ] د پښتنو یوه قبیله ـ

**ترکے**:- (ت+ ر+ کے) [پ ـ اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: ترکي ، (مؤ ، وا: ترکۍ)] تور رنګے ، تور مرغے ـ

**تُرکے** :- (ت+ ر+ کے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ترکیان (مؤ ، وا: ترکې) ] د تُرکو د ملک سړے ، د تُرکو سره تعلق لرُونکے ـ

**ترکېدل** :- (ت+ ر+ کې +د +ل) [آف: پ (قـاموس) مـص لا] (۱) پـه چابـک یـا لښته وهلے کېدل ،(۲) راټوکېدل ، زرغونېدل ـ

**ترکېدل** :- (ت+ ر+ کې +د +ل) [پ (ب ، خ) مـص لا] غوښې تـه زړۀ کېـدل ، د غوښې خوراک ته زیاته مینه او خواهش پیدا کېدل

**ترکېـدلے** :- (ت+ ر+ کـې +د +لـے) [آف: پ (قـاموس) مـف ] (۱) راټوکېـدلے ،رازرغون شوے (۲) په چابک یا لښته وهلے شوے ـ

**ترکېدنګ** :- (ت+ ر+ کې +د+ ن+ ګ) [آف: پ (قاموس) حمص ]و ــــ ترکېدنه ـ

**ترکېدنـه** :- (ت+ ر+ کـې +د+ نـه) [آف: پ (قـاموس) حمـص ] (۱) ترکېـدنګ ، راټوکېدنه ، رازرغونېدنه ، (۲) په چابک یا لښته شړقیدنه ، وهل کېدنه

**ترکېدنه** :- (ت+ ر+ کې +د+ نه) [پ (ب ، خ) حمص ]غوښې تـه زړۀ کېدنـه ، د غوښې خوراک ته اشتها پیدا کېدنه ـ

**ترکېـدل** :- (ت+ ر+ کـې +د +ل) [آف: پ (قـاموس) مـص لا] (۱) راټوکېـدل ، زرغونېدل ، (۲) په چابک یا لښته وهل کېدل ـ

**ترکېدُونکے**:- (ت+ ر+ کې +دُو +ن +کے ) [ آف: پ ( قاموس ) اس ، مف ] (۱) راټوکېـدُونکے ، رازرغونېـدُونکے (۲) پـه چابـک یـا لَښـتـه وهــل کېدُونکے

**ترکـي ورکـي** :- (ت+ ر+ کِـي +وَ +ر +کِـي) [آف: پ (قـاموس) ص ] ګـډوډ ، شیندلے ، خوروور ـ

**تـرګ** :- (ت+ ر+ ګ) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـذ] مـوټے ، هغـه مـرض چـه د څناور د مټ نه غوښه لاړه شي او زخم تر جوړشي ـ

**ترګ** :- (ت+ ر+ ګ) [پ (ظف) اس ، مذ ، وا ، ج: ترګونه ]زنار ـ

**ترلـټ** :- (ت+ ر+ ل +ټ) [آف: پ (قـاموس) اس ص، مـذ] تـراټ ، تاخـت ، منډه ، د زړه ـ

**ترلغونې** :- (ت+ رَ+ لَ +غُو +نې ) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ] د بزو وغېره هغه بیماري چه د خولې نه ئې اوبۀ بهېږي ـ

**نیول** :- (آف) اص ، د څناور د ترلغونې په مرض اَخته کېدل ، ترلغوني وهل ـ

**وهل** :- (آف) ، اص ،وــــــــ ترلغونې نیول

**ترلۀ** :- (ت+ ر+ لۀ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : ترلې ، ترلې ګانې] د ترۀ لُور ، د ترور لُور ، د کاکا لُور ـ

**ترلـۀ انا** :- (ترلـۀ + اَ+ نـا ) [آف: پ (قـاموس) اس ، مؤ ] دنیـا ،نیـا ، ډېـره لـرې رشته

**ترلـه وتـل** :- (تـر+ لـۀ+ وَ +ت +ل) [آف: پ (قـاموس) مـص ] (۱) غصـه کېـدل، قهر اخستل (۲) مېلمه ته زیات خرڅ کول ـ

**تروله وتلې** :- (ترلـه + وَ + ت +لـے) [آف: پ (قـاموس) ص، مذ] (غصـه شـوے ، قهر اخستے ،(۲) ډېر خرڅې ـ

**ترلـه وتنګ** :- (ترلـۀ+ و+ ت +ن +ګ) [آف: پ (قـاموس) حمـص ] وــــــ ترلـۀ وتنه ـ

**ترله وتنه**:- (ترلۀ+ وَ+ ت +نه ) [آف: پ ( قاموس ) حمص ] ترلۀوتنګ ، ډېر غصه کېدنه ـ

**ترم** :- (ت+ ر+ م) [ پ ـ اس ، مذ ، وا ]تمبل ـ

د انګرېز طنبور ترم دلته غږېږي
نـصـاري شُو حاکمان فرخ آباد   قنبر علي

**تُرم** :- (تُ+ ر+ م) [پ (ظفر) اس ، مذ، وا ، ج : تُرمونه ] هغه آس چه خسي نۀ وي (۲) بګل ، بښکر

**ترمائي** :- (ت+ ر+ ما +ئي) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ]هغه انګور چه په آخر وخت کښې پخېږي ، پاسینه یا کسرے انګور ـ

**ترمباز** :- (ت+ ر+ م +بـا +ز) [پ (ظفـر) اس ، مـذ، وا (مـؤ ، دا : ترمبـازه ، ج: ترمبازے)] د غوېل هغه غواے چه په قطار کښې د ټولو نه دننه تړلے وي ، د ناوې غوائیے چرمباز ـ

**ترمل** :- (ت+ ر+ مَ+ ل) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ]ماسختن ـ

**ترملا** :- (ت+ ر+ م +لا) [پ ، ص ]تر ملا پورې ، تر ملا راسې ـ

**ترمله** :- (تر+ م + لَه) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ]سرسري، د وریژو اوبۀ ـ

**ترمنه** :- (ت+ ر+ م +نه) [پ ـ (ظف) اس ، مؤ ، وا ، ج : ترمینې ] جبـه ، بوختـه ، زیمناکه زمکه ـ

**ترمنه** :- (ت+ ر+ م + نه) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ ] اوتـه ، وتره ، کروندې تـه تیاره زمکه ـ

**ترمـه** :- (ت+ ر+ مـه) [آف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ] (۱)نرمـه خـاوره (۲) نوجنـه زمکه (۳) چاؤد چاؤده ـ

**کېدل**:- (آف) ، اص (۱) خاؤره نرمېدل (۲) زمکه نوجنه کېـدل ،(۳) زمکه چاؤده چاؤده کېدَل ـ

**ترمي** :- (ت+ ر+ مِي) [آف: پ (قاموس) اس]د شپون درمې د شړلو آواز ـ

**ترمـي ترمـي** :- (ت+ ر+ مـي +تـر +مـي) [آف: پ (قاموس) ص ] تـرم ترمـې ، ټوټې ټوټې ـ

**ترمې ترمې** :- (تر+ مې+ تر+مې) [پ ، ص ] ترمي ترمي ، ټوټې ټوټې،دړې وړې ، خور وور ـ

د نـــاکـس یــــاري پــه مـثـل د اورُو ده
چې د یار په مخ کښې دړومي ترمې ترمې   خوشحال خان

**کېدل** :- اِص ، ذرې ذرې تلل ، ټوټې ټوټې کېدل ، خور وور کېدل ـ

**ترمیره** :- (ت+ ر+ مي +ره) [پ ، اس ، مؤ ]د اوبو یو بوټی چه غونډي شان پاڼې ئې وي ، په پرهر ترلې شي او د سابو په شان پخولې هم شي ، د جې ساګ

**ترنام و ترننګ تېرېدل** :- اص ، د شرم وحیا نه ورتېرېدل ، د عزت خیال نهٔ ساتل ـ

زهٔ ترنام و ترننګ تېر شوم ستا د پاره
تـهٔ بـه څـو زما د کار د پاره بچ کړې خوشحال

**ترناؤ** :- تر+ نا+ ؤ )(۱) بېله ، د اوبو لښتے (۲) د دوؤ غرونو په مېنځ کښې لار ـ

**ترنج** :- (ت+ ر+ ن +ج) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ]ځوز ، هغه ازغن بُوټی چه ترنجبین تر حاصلېږي ـ

**ترنجوکے** :- (ت+ رَ+ ن +جُو +کے ) [ آف: پ ،اس ،مذ ، وا ، ج : ترنجوکي ]
ترنجه ، ترنجي ، اَټه ، د سپنسو یاد رېښمو اټه ، ترنځوکے ـ

**ترنجه** :- (ت+ ر+ ن +جه ) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: ترنجې]
هغهٔ تېرهٔ شان کاڼے چه د ضرورت په وخت شپونکي ګډې بزې پر حلالَوي

**ترنجه** :- (ت+ ر+ ن+ جه ) [ ب ، خ ) اس مؤ ، وا ، ج: ترنجي ]و ـــ ترنجوکے ـ

**ترنجے** :- (ت+ ر+ ن +جے ) [پ ـ اس ، مذ]وـــــــ ترنجوکے ـ

**تـرنځ** :- (ت+ ر+ ن +دز ) [پ ـ اِس ، مـذ (مؤ ، وا: ترنځـه ، ج: ترنځـې)] تـپ ، خوار ، مانده ، ډنګر ـ

**کول** :- (اَف) اِص ، کمزورے کول ، مانده کول،ډنګرول ـ

**کېدل**:- (اَف) اِص ، کمزورے کېدل ، مانده کېدل ، ډنګرېدل ـ

**ترنځتوب** :- (ت+ ر+ ن +دز + تو+ ب) [پ ، ص ، مذ ]کمزوري ، مانده توب ، ډنګر توب ، ترنځوالے ـ

**ترنځکے** :- (ت+ رَ+ ن +د+ ز+کے) [پ ـ اِس تصغیر ، مذ ، وا ، ج: ترنځکي ، (مؤ ، وا : ترنځکې)]کمزور ګوتے ، مانده ګوتے ، ډنګر شان ـ

**ترنځلے** :- (ت+ ر+ ن +د+ز+لے) [پ:اِس، مذ]ترینګلے ـ

**ترنځوالے** :-(ت+ ر+ ن +د+ز+وا+لے) [پ، ص،مذ]و ـــ ترنځتوب ـ

**ترنځوکے** :-(ت+ ر+ د +زُو +کے ) [پ اس ، مؤ]و ـــــــ ترنجوک ے ـ

**ترنځول** :- (ت+ ر+ ن +د +زَ + و+ ل ) [پ مص مت ]تپ تیپ کول، کمزورے کول ، مانده کول ، ډنګرول ـ

**ترنځونے** :- (ت+ ر+ ن +د + ز+ وُو +ن +کے ) [پ ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج : ترنځوونکي ، (مؤ ، وا : ترنځوونکې)] ډنګروونکے ـ

**ترنځه** :- (ت+ ر+ ن +د +زَه ) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج : ترنځې ] د ترنځ مؤنث ـ

**ترنځے** :- (ت+ ر+ ن +د +زَے ) [ پ ،اِس ،ص ، مـذ ، وا ، ج : ترنځـي ، مـؤ ، وا : ترنځي )]اوچ کلک مانده سړے ، ډنګر سړے ، نرے تُرنے سړے ـ

**ترنځي**:- (ت+ ر+ ن +د +زَي) [آف: پ (قاموس) اس ، مؤ]داریځ ، د اوبو داره ـ

**ترنځېدل** :- (ت+ ر+ ن + ځ +ي +د +ل) [پ ، مص لا] کمزورے کېدل ، مانده کېدل ، ډنګرېدل ـ

**ترنځېدنګ** :- (ت+ ر+ ن +د +زي +د +ن +ګ) [آف: پ (قاموس) حمص ]
و ـــــــ ترنځېدنه ـ

**ترنځېدنـه** :- (ت+ ر+ ن +زي +د +نـه) [پ ، حمص ]ترنځېـدهٔ ، ترنځېـدنګ ، کمزورے کېدنه ، مانده کېدنه ، ډنګرېدنه ـ

**ترنځېدُونکے** :- (ت+ ر+ ن +د + زے +دُو +ن +کے) [پ ، فـاع ، اس ، مـذ ، وا ، ج : ترنځېدُونکي (مؤ ، وا : ترنځېدُونکے )] کمزورے کېدُونکے ، مانده کېدُونکے ، ډنګرېدُونکے ـ

**ترنځېدهٔ** :- (ت+ ر+ ن +د +زي +دهٔ ) [پ ، حمص ]و ـــــ ترنځېدنه

**ترند**:- (ت+ ر+ ن +د ) [پ ـ اس ص ، مذ ،(مؤ، وا : ترنده ، ج: ترندي) ]
ترهېدُونکے ځاروے ، هغه ځاروچه د خلقو نه یرېږي او منډې تررېږي ترِ وهي ، ترئېدُونکے ځاروے مؤ:ج ـ

د زنـګي بڼ ته مې سپرلے راوله
رادرومه ترندې هوسۍ څهٔ شوې حمزه شنواري

**کېدل** :- اِص ، د ځاروي ترهېدل ، ترئېدل ـ

**ترندتوب**:- (ت+ ر+ ن +د +تو+ب) [پ ، ص ، مذ ]ترندتیا ، ترهندتیا ، ترئېدنه ، ترندوالے ، د ترهېدو عادت ـ

**ترندتیا** :- (ت+ ر+ ن +د +ت +یا) [پ ، ص، مؤ]و ـــــــــترندتوب ـ

**ترندوالے** :- (ت+ ر+ ن +د +وا+لے) [پ ، ص ، مذ]و ـــــــ نرتوب ـ

**ترنړ**:- (ت+ ر+ ن +ړ) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، مؤ ، وا: ترنړه ،ج: ترنړې)]
ځورب ، اَس ، غټ پټ اَس ـ

**کېدل** :- (اَف) اِص ، اَس ځربېدل ، اَس غټېدل ـ

**ترنـړې** :- (ت+ ر+ ن +ړ +ئـي ) [آف: پ (قـاموس) اِس مـؤ] (۱) زیـات خلـق (۲)د مېلمنو ګڼه ګوڼه (۳) په زوره چغې ، شور ، زوږ ، چغې ناري ـ

**ترنړے**:- (ت+ ر+ ن +ړے) [پ ، اِس ، مؤ ، ج ] (۱)ټوپونه ، منډې دوړې (۲) ټولې ، جوپې ـ

دا ئې ذکـر د کـامل اخستے نهٔ دے
لکـه خرونه ناړې شوري وهي ترنړې خوشحال

**ترنز**:- (ت+ ر+ ن +ز) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] و ـــــــــ ترنځ ـ

**ترنزکه**:- (ت+ ر+ ن +ز+که) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ] بنټک ـ

**ترنزی** :- (ت+ ر+ ن +زی) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ]د اوبو داره ـ

**ترنـک** :- (ت+ ر+ ن +ک) [آف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ] (۱) پـه قهـر ، سـوخت ، غصه (۲) زیاته اشتها ـ

**نیول**:- (اَف) اس ، زیات غصه کېدل ، ډېر سوختېدل ـ

**ورته نیول** :- (ظفر) اِص ، لوږې په سر اَخستل ، زیاته اشتها پېدا کېدل ـ

**ترنک** :- (ت+ ر+ ن +ک) [آف: پ (قاموس) اِس ص، مذ]د قندهار ښار سویل طرف ته بهېدُونکے دریاب ـ

**ترنکوڅه**:- (ت+ ر+ ن +کو +تسه ) [پ (ظفر ) اِس ، مؤ ، وا ، ج : ترنکوڅې ]
ترنګوڅه ، مچوغنه، مچلوغزه ، بلبچنه ـ

وخـت پـه وخـت په محبت وبله ورشي
بیا ناګاه ئې سره جنګ شي په ترنګوڅه مرزا انصاري

**ترنکي** :- (ت+ ر+ ن +کي) [آف: پ (قاموس) ص ، مؤ]غصه ناک قهرجن ـ

**ترنګ** :- (ت+ ر+ ن +ګ) [پ ـ اِس ، مذ]د ساز غږ یا آواز ، د ګړیال آواز ـ

**وهل**:- اِص ، د ګړیال آواز کول ـ

**ترنـګ** :- (ت+ ر+ ن +ګ) [آف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ] (۱) یـو سـاعت وخـت ، لږ وخت (۲) د ګړیال آواز ، (۳) د لوبو آوار میدان (۴) غنم او وربشې چې وږے اونیسي ـ

**ښهٔ کېدل** :- (اَف) اِص ، د چا وخت ښهٔ کېـدل ، پـه چا د مزې او خوشحالۍ وخت راتلل ـ

**یو ترنګ تېرېدل** :- (اَف) اِص ، یو ساعت تېرېدل ، ساعت ګړی ، وخت آوړېدل

**ترنګا** :- (ت+ ر+ ن +ګا) [پ ، اِس صو ، مؤ ، وا ، ج: ترنګاوې]د ساز وغېره

آواز ، ټنګ ټکور .

**ترنګـړ** :- (ت+ ر+ ن +ګ +ړ) [اپ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج : ترنګړونـه ] تـرنګړ ، د وښو او بوسو وړلو جالي دار څيز ، کورے.

**ترنګله** :- (ت+ ر+ ن +ګ +له) [آف: پ (قاموس) اِس] يو قسم ونه چه د څانګو نه ئې ټوکرۍ جوړولې شي .

**ترنګنړ** :- (ت+ ر+ ن +ګ +ن +ړ) [اپ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ترنګنړونه ]و - ترنګړ

**ترنګو**:- (ت+ ر+ ن +ګو) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ]سازنګ، ساز.

**ترنګوڅـه** :- (ت+ ر+ ن +ګـو+ تسـه ) [ آف: پ (قـاموس) اِس ، مـؤ ، وا ، ج : ترنګوڅې ]الوتونکے ژوے .

**ترنګول** :- (ت+ ر+ ن +ګ +و +ل) [آف: پ (قـاموس) مـص مت ]ساز ټنګـول ، د ساز نه آواز ويستل .

**ترنګونه**:- (ت+ ر+ ن +ګ +و +نه ) [آف: پ (قـاموس) حمص ]د ساز نـه آواز يا ترنګ ويستنه .

**ترنګوُونکے** :- (ت+ ر+ ن +ګ +وُو +ن +کے ) [آف: پ (قاموس) اِس ، فـاع ، مـذ ، ا ، ج : ترنګـوُونکي (مـؤ: ترنګـوُونکې]د سـاز نـه آواز يـا ترنـګ ويستُونکے .

**ترنګه** :- (ت+ ر+ ن +ګه) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج : ترنګې ] هواره تخته .

**ترنګهـار** :- (ت+ ر+ ن +ګ +هـا +ر) [اپ ، اِس ، صـو ، مـذ ] ترنګهـارے ، د رباب يا د نور ساز د ترنګ او ټنګ آواز ، ترنګے .

**ترنګهارې** :- (ت+ ر+ ن +ګ +ها +رے) [آف: پ (قاموس) اِس ، صو ، مذ] و ـــــــــ ترنګهار.

**ترنګے** :- (ت+ ر+ ن +ګے) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] وــــ ترنګهار

**ترنګي** :- (ت+ ر+ ن +ګي) [آف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ]د وچو غنمو درُوزه چه وريږي ئې راکاږۀ شوي وي .

**ترنګېدل**:- (ت+ ر+ ن +ګے +د +ل) [آف: پ (قـاموس)مص لا] (۱) د ربـاب يـا د نور ساز ټنګېدل ، د ساز نه د ترنګ آواز ويستلے کېدل (۲) د غنمو د فَصل وړے نيول .

**ترنګېدنه**:- (ت+ ر+ ن +ګے +د + نه ) [آف: پ (قاموس) حمص ] (۱) ترنګېدۀ ، د رباب يا د بل ساز نه د ترنګ آواز ويستلے کېدنه ، رباب ټنګېدنه ،(۲) د غنمو فصل وړے نيونه .

**ترنګېدُونکے** :- (ت+ ر+ ن +ګے دُو +ن +کے ) [آف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : ترنګېدُونکي (مؤ : ترنګېدُونکې ](۱) رباب يا د بل ساز نه د ترنګ آواز ويسـتلے کېـدُونکے ، ربـاب ټنګېـدُونکے (۲) د غنمـو فصـل وړے نيووُنکے .

**ترنګېدۀ** :- (ت+ ر+ ن +ګې +دۀ) [آف: پ (قاموس) حمص] وــــــ ترنګېدنه.

**ترنه انا**:- (ت+ ر+ نه +اَ + نا) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ]و ـــــ ترله انا.

**ترنيکۀ**:- (ت+ ر+ ني +کۀ) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] غورنيکۀ ، د نيکۀ پلار

**ترني**:- (ت+ ر+ ني ) [اپ (ظفر )اِس ، مؤ ]محصول ، ټيکس ، ترنړے

**ترو** :- (ت+ رو ) [اپ ، حرف] (۱) ترې ، ترې نه ، ترنه ، ورنه ،(۲) نو (۳) دے د اېره له دې کېله .

حاصل به ئې ترو نۀ وي
که دې هر څو ندامت کا — مرزا انصاري

په هومره ډېر مقتوله تۀ لاهم نۀ ئې مـلوله
که سل خـونونه اوکا رجلات تـرو څـۀ پروا — خوشحال خان

**تَروان** :- (ت+ ر+ وا +ن) [آف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ]يو قسم بـوټے دے چې مېوه ئې د شفتالو په شان ده .او سُورکے هم ورته وائي .

**تروبې** :- (ت+ رو+ بې ) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ]سرکه تروې اُوبۀ.

**تروپ** :- (ت+ رو+ پ ) [اپ (ظفر ) اِس ، مذ ]د مولۍ بوزغلے يا کانړ.

**تروپړ** :- (ت+ رو+ پَ + ړ) [اپ ( اآس ، اِس ، مذ ]د ترور زوے .

**تروپے** :- (ت+ رو+پے ) [اپ (ظفر) اِس ، مذ ]يو قسم تريو ساګ ، تريچے .

**تروټ** :- (ت+ رو+ ټ) [اپ ، اِس ، مذ ]نقصان ، تاوان ، چټې .

**پرغاړې** :- (اف) اِص ، د تاوان ذمه وار .

**خوړل** :- اِص ، نقصان رسېدل ، تروټ رسېدل ، تاواني کېدل .

**رسېدل**:- اِص ، و ــــــــ تروټ خوړل .

**زغمل** :- اِص ، نقصان برداشت کول ، تاوان زغمل ، نقصان پورته کول .

**کول** :- اِص ، نقصان کول ، تاوان کول ، تروټ من کېدل .

**کېدل**:- اِص ، نقصان کېدل ، تاوان کېدل .

**تـروټ مـن** :- (تـروټ+ م + ن ) اپ ، اِس ، مـذ ، (مـؤ ، وا : تـروټ منه ، ج: تـروټ منې ] تاواني ، نقصاني .

**تروټه** :- (ت+ رو+ ټه ) [اپ ، ص ، مؤ](۱) چټې ، تاوان شوے ، کوټه شوے په غاړه شوے ، تاواني (۲) بې قدره ذليل.

پر غافل باندې د سود سودا شوه ترټه
چې بـنـدګي ئې پـه ريـا خبره جُوټه — مرزا انصاري

**تروټـه کـول** :- اِص (۱) چټې کـول ، پـه چا تـاوان ورتـپـل (۲) بـې قـدره کـول ، کوټه کول.

**کېدل** :- اِص (۱) چټې کېدل ، پـه چا تـاوان کېـدل ، (۲) بې قـدره کېـدل ، کوټـه کېدل

**تروټـه مـال** :- (تروټـه +مـا +ل) [اپ ، اِس ص ، مـذ ]کوټـه مـال ، تـاواني مـال ، نقصاني مال ، هغه څيز چه د خرڅ نه پاتې وي.

**تـرور**:- (ت+ رو+ ر ) [اپ ، اِس ، مـؤ ، وا ، ج: تروريـانې ، ترېنـدې ] د پـلار يـا د مور خور ، ماسي ، اګر ، ببو ، تروره .

**تـرور**:- (ت+ رو+ ر) [آف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ] ترهـور ، وارخطـا ، يرېـدلے ، ډار شوے ، ترهنده .

**کول**:- (اَف) اِص ، ترهور کول ، وارخطا کول ، يرول ، ډرول .

**کېدل**:- (اَف) اِص ترهور کېدل ، ترهېدل ، وارخطا کېدل ، يرېدل ، ډارېدل .

**تروړتـوب**:- (تـرور+ تـو+ ب) [آف: پ (قـاموس) ص ، مـذ] وارخطـائي ، ويـره اخستل ، تروروالے .

**تـرورزے**:- (ت+ رو+ ر +زے) [آف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج : تـرورزي (مؤ ، وا : تروزے ، ج: ترور زيانې ]د ترور زوے ، د ترور يا ماسي بچے

**تـرور مېـرۀ** :- (ت+ رور+ مې +ړه) [اپ ، اِس ، مـذ ] د تـرور خاونـد ، د ماسي څښتن

**تروروالے** :- (ت+ رُو+ ر +وا +لے ) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ]و ــــتروړتوب.

**تـرورول** :- (ت+ رو+ ر +و +ل) [آف: پ (قـاموس) مـص مـت ] وارخطـا کـول ، ويرول ، ډارول.

**ترورونـه** :- (ت+ رو+ ر +و +نـه ) [آف: پ (قـاموس) حمـص ] وارخطـا کونـه ، يَرونه ، ډاروَنه .

**تروروُونکے** :- (ت+ رو+ ر + وُو +ن +کے) [آف: پ (قـاموس) اِس ، فـاع ، مذ ، وا ، ج : تروروُونکـي (مـؤ : تـروروُونکې )] وارخطـا کـوُونکے ، يـروُونکے ،

ډاروُونکے۔

**تروری** :- (ت+رو+رَ+ی) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ] تروری ، ترور، ماسي ، اګو۔

**تروربدل** :- ت+رُو+ربې+د+ل [آف: پ (قاموس) مص لا] وارخطا کېدل ، ډاربدل ، یربدل ، ترهبدل۔

**ترورېدنه** :- ت+رُو+رې+د+نه) [آف: پ (قاموس) حمص] وارخطا کېدنه ، ترهېدنه ، یرېدنه ، ډارېدنه۔

**تروربدُونکې** :- ت+رو+رې+دُو+ن+کے) [آف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: تروربدُونکي ، (مؤ ، وا: ترورېدُونکې)] وارخطا کېدُونکے ، یربدُونکے ، ترهېدُونکے ، ډارېدُونکے۔

**ترورہ** :- ت+رو+رَه) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ] د زُول باران په وخت توره تیارۀ۔

**ترورۀ** :- ت+رو+رِه) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تروړے] د زري پېښو د ګنډلو د پاره نیم ګز قدرزري تار ، نیم ګز طله۔

**تروړی** :- ت+رو+ړ+ی) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ] لومبړه ، تروری۔

**تروړے** :- ت+رو+ړَے) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] چتے ، چورندک ، چترکے

**ترورمی** :- ت+رو+ژ+م+ی یا ت+رو+ګ+م+ی) [پ اِس ص ، مؤ] چې سپوږمی نۀوي ، تربږمی۔

ترورمی کـه د لالا په مخ سنبل
که حبشو کړه تیارۀ په شام لذیذ — بېدل

**تروسکه** :- ت+رو+س+که) [پ ، حرف] شاید چې ، ګوندِ چې دا تکیه کلام دے۔

وې مې چې په مخ دې توري زلفې تور ښامار دے
وې ئې تـــروسکه څـۀ لره ښامارو ته ویسا کړ — خوشحال خان

**تروسه** :- ت+ر+و+سه) [پ ، حرف] تروسه پورې ، دخپل طاقت او وس مطابق ، ترڅو چې کېدے شي۔

**تروسه وسه** :- اِص ، ترڅو چه وَس رسي۔

**تروښول** :- (ت+رو+ښ+و+ل) [آف: پ (قاموس) مص ، مت] (۱) څۀ څیز د نظر نه اَخوا کول (۲) په څۀ کار کښې د راوستو د پاره یو څیز پټ ساتل یا ډډې ته کول۔

**تروښولې** :- (ت+رو+ښ+و+لې) [آف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ج: تروښولي (مو: تروښولې)] (۱) څۀ څیز د نظر نه اَخوا کړے (۲) په څۀ کار کښې د راوستو د پاره یو څیز څټ ساتلے یا ډډې ته کړے۔

**تروښونګ** :- (ت+رو+ښ+و+ګ) [آف: پ (قاموس) حمص] و ـــــتروښونه۔

**تروښونه** :- (ت+رو+ښ+و+نه) [آف: پ (قاموس) حمص] (۱) تروښونګ ، څۀ څیز د نظر نه اَخواکونه ، پناه کونه۔

(۲) په څۀ کار کښې د راوستود پاره یو څیز پټ ساتنه یا ډډې ته کونه۔

**تروښوُونکې** :- (ت+رو+ښ+وُو+ن+کے) [آف: پ (قاموس) اِس فاع ، مذ ، وا ، ج: تروښوُونکي (مؤ: تروښوُونکې) (۱) څۀ څیز د نظر نه اخوا کوُونکے ، پناه کُوونکے (۲) څۀ څیز په کار راوستو د پاره پټ ساتُونکے یا ډډې ته کوُونکے۔

**تروښېدل** :- (ت+رو+ښ+ښې+د+ل) [آف: پ (قاموس) مص لا] (۱) څۀ څیز د نظر نه اخوا کېدل (۲) په څۀ څیز پټ ساتلے کېدل۔

**تروښېدنه** :- (ت+رو+ښې+د+نه) [آف: پ (قاموس) حمص] (۱) تروښېدۀ ، څۀ څیز د نظر نه اَخوا کېدنه (۲) په څۀ کار کښې د راوستو د پاره یو څیز ډډې ته کېدنه۔

**تروښېدُونکې** :- (ت+رو+ښې+دُو+ن+کے) [آف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: تروښېدُونکي (مو: تروښېدُونکې)] (۱) څۀ څیز د نظر نه اخوا کېدونکے ،

(۲) په څۀ کار کښې د راوستو د پاره یو څیز ډډې ته کېدُونکے۔

**تروښېدۀ** :- (ت+رو+ښې+ده) [آف: پ (قاموس) حمص] و ـــــتروښېدنه۔

**تروکه** :- (ت+رو+که) [پ (ب ، خ) ، امر] راکړه ، ماله راکه۔

**تروکے** :- (ت+ر+و+کے) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ، دا ، ج: تروکي] یو تر یو شان ساګ چې کچه هم خوړلے شي او پخولے هم شي ، ترونکے۔

**تروکې** :- (ت+رو+کَے) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] په مزکه خور زیلی زیلی بُوټي۔

**تروکېدل** :- (ت+رو+کې+د+ل) [پ (ب ، خ) مص لا] راټوکېدل۔

**ترول** :- (ت+ر+و+ل+) [آف: پ (قاموس) مص ، مت] ترهول ، یرول ، ډارول

**تروم** :- (ت+رو+م) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ترومُونه] و ـــترم۔

**ترومے** :- (ت+رو+مَے) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] یو ګوټ اُوبۀ۔

**ترونکے** :- (ت+رو+ن+کے) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا] و ـــ تروکے۔

**ترونه** :- (ت+رو+و+نه) [پ ، حمص] ترهونه ، یرونه ، ډارونه۔

**تروُونکے** :- (ت+رو+وُو+ن+کے) [پ ، اِس ، فاع ، مذ ، وا ، ج: تروُونکي (مؤ: ترؤونکے)] ترهوُونکے ، یَروُونکے ، ډاروُونکے۔

**تروه** :- (ت+ر+ره) [پ اِس ، مؤ ، وا ، ج: تروهې] (۱) د تریو مؤنث ، ترشه ، (۲) خمبیره ، تومنه۔

**تروه کول** :- اِص (۱) ترشول ، (۲) اوړۀ خمبیره کول۔

**کېدل** :- اِص (۱) ترشېدل (۲) اوړۀ خمبیره کېدل۔

**تُروه** :- (ت+ر+وَه) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ] سرکه ، تروېې۔

**تروه** :- (ت+رُ+وَه) [پ (ګن) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تروې] د منجوته جوړه لویه پوزی چې اکثر په چت اچولې شي۔

**تروه ترخه** :- (ت+ر+وه +ت+ر+خه) [پ ، ص ، مذ ، (مؤ ، ج: تروې ترخې)] تریو او تریخ ، بې مزې او بې خونده ، مؤ۔ ج:

له تروو ترخو تر یو تریخ مه شه حمیده
پـه دا زهـر آمـوختـه لـره مزاج
کـه هـزار خواري کوم نۀ موم
بې ترۀ ترخو خبرو بل خبر بیا — بېدل

**تَروے** :- (ت+ر+وَي) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: تروي] منج۔

**تروې** :- (ت+ر+وې) [پ ، اِس ، مؤ ، ج] (۱) ترشې ، چه خوند ئې تریو وي (۲) شُوملې ، شلومبې ، شنبې ، جاڼې۔

**کول** :- اِص ، شُومبلې جوړول ، د ماستونه تروې تیارول۔

**کېدل** :- اِص ، شُوملې جوړېدل ، د ماستو نه تروې تیارېدل۔

**ترویت** :- (ت+ر+وي+ت) [پ ، اِس ، مذ] د نجوم علم ، د پال کتلو علم۔

**تَروېتون** :- (ت+ر+وې+تُو+ن) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] د نجوم د علم پوهه ، د پال ګری علم ، ستوري پوهه۔

**تَروېتے** :- (ت+ر+وې+تے) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا] نجومي ،

تورېتي، پال کړے ، هغه سړے چه د ستورو په علم پوهېږي ، تروېتي ـ
**تروېتي** :- (ت+ ر+ وې +تي ) اِپ ـ اِس ، مذ ، وا ، ج : تروېتيان اِو ـــ تَروېتے
چې په زړۀ ئې ګرځوم په تا معلوم دي
تروېتي غوندي ويل ټوله د زړو کړي خوشحال خان
**تَروير** :- (ت+ ر+ وِي +ر ) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مذ اِ(۱) ټګي ، فريب، دوکه (۲) غم ، فکر، انديښنه ، وسواس ـ
**ترۀ**:- (ت+ رہ+)اِپ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ترُونه اِد پلار رور ، کاکا ، چاچا ـ ج:
چې په کانو مشران ته ئې حرمت کړه
بيا هغه چې د په ځاے دي لکه ترونه خوشحال خان
**ترۀ** :- (ت+ رَہ ) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ترېې اِ ناوه ،ترې ، پرنالہ ـ
**تره** :- (ت+ رَہ ) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مؤ اِ(۱) کرکه ، نفرت ، (۲) يَره ، ډار ، (۳) د خولې د وښکي پترے ـ
**کول** :- (اَف) اص ، (۱) کرکه کول ، نفرت کول (۲) يره کول ، ډاربدل (۳) د خولې د وښکو پترے نيول ـ
**کېدل**:- (اَف) اص (۱) کرکه کېدل ، نفرت کېدل (۲) يره کېدل ، ډارکېدل ، (۳) د خولې د وښکو پترے نيول ـ
**تره** :- (ت+ رَہ ) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مؤ اِوجود ، بدن ـ
**تره** :- (ت+ رَہ ) اِپ ، اِس ، مؤ، وا، ج: ترې اِد اُوړد کدو په شان خونړے او ، اُوږده سبزي ـ
**ترها** :- (ت+ رَ+ ها) اِآف: پ (قاموس) اِس ـ مؤ اِترهه ، يَره ، ډار ـ
**کول** :- (اَف) اص ، ترهه کول ، يربدل ، ډاربدل، ترهبدل ـ
**تِرهاؤ** :- (ت+ ر+ ها +ؤ ) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مذ اِاوړے ، د غلې پيمانه ـ
**تره خُولے** :- (ت+ ره + خو +لے ) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا، ج: تره خولي ، (مؤ: تره خُولې ) اِتورخولے سپرلے ، هغه پسۀ چه خولۀ ئې توره وي ـ
**تَرهړه** :- (ت+ ر+ ه +ړه ) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مؤ اِد ويرې او ډار موقعه ، د ترهې ځاے ـ
**ترهغو** :- (ت+ ر+ ه +غو ) اِپ ، حرف اِترهغه ، ترهغه پورې ، تر هغه وختنه ، هغه ساعت پورې ، تر هغو پورې ـ
**ترهغو پورې** :- (تر+ هغو+ پو+رې ) اِپ ، حرف اِ و ــــ تر هغو ـ
**ترهغه** :- (ت+ ر+ ه +غه ) اِپ ـ حرف اِ و ــــــ تر هغو ـ
**ترهغه پورې** :- (ترهغه + پو+ رې ) اِپ ـ حرف اِو ـــــ تر هغو ـ
**ترهند**:- (ت+ ر+ ه +ن +د ) اِپ ، اِس ، مذ (مؤ، وا: ترهنده ،ج: ترهندې اِ تر هندے ، هغه سړے يا ښاروے چې يربېږي ـ
**ترهندتوب** :- (ترهند+ تو+ ب) اِپ ، ص ، مذ اِترهنديتا ، ترهندوالے ، ترهېدنه
**ترهندتيا** :- (ترهند+ ت+ يا ) اِپ ، ص ، مؤ اِو ــــــــ ترهندتوب ـ
**ترهند والے** :- (ترهند+ و ا+ لے) اِپ ، ص ، مذ اِو ــــ ترهندتوب ـ
**ترهندوے** :- (ت+ ر+ ه +ن +دو + ے ) اِپ ، اِس ، مذ اِو ـــــترهند ـ
**ترهـور**:- (ت+ ر+ هُـو +ر ) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مذ (مؤ ، وا: ترهوره ، ج: ترهورې) اِوارخطا ، ويرېدلے ، يربدلے ، ډار شوے ، يرې اخستے ـ
**کېدل** :- (اَف) اص ، وارخطا کېدل ، ويرېدل ، يربدل ، ډاربدل ـ
**ترهـوري** :- (ت+ ر+ هـو +رې ) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مؤ اِ وارخطائي ، يره ډار
**ترهـوال** :- (ت+ رہ+ وا +ل) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مذ (مؤ، وا، ترهواله ، ج: ترهوالې)اِسهم جن ، سهم ناک ، يرې او ډار اخستے
**ترهول** :- (ت+ ر+ ه +و +ل) اِپ ، مص مت اِويرول ، ډارول ، يرول
**ترهولے** :- (ت+ ر+ و +لے ) اِپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ترهولي (مؤ: ترهولې) ويرولے ، ډار کړے ـ
**ترهونګ** :- (ت+ ر+ ه +و +ن +ګ ) اِآف: پ (قاموس) حمص اِو ـــــ ترهونه ـ
**ترهونه** :- (ت+ ر+ ه +و + نه ) اِپ ، حمص اِترهونګ ، ويرونه ، يرونه ، ډاوونه
**ترهوُونکے**:- (ت+ رَ+ ه +وو +ن +کے ) اِپ ، اِس فاع ، مذ ، دا ، ج: ترهوونکي ، (مؤ : ترهوونکې )اِويروُونکے ، ډاروُونکے ـ
**ترهه** :- (ت+ ر+ هه ) اِپ ، اِس مؤ اِيَره ، ډار ، خوف ، انديښنه ـ
**کول** :- اص ، يره کول ، انديښنه کول ـ
**ترهېدا**:- (ت+ ر+ هې +دا ) اِپ ، اِس ، مؤ اِيره ، ډار ، ترېدا
**ترهېدل** :- (ت+ رَ+ هې+د +ل) اِپ ، مص لا اِيرېدل ، ډارېدل ، ترېدل ـ
هـر نـفـس جـلـه وجـوده قـدم اخلې
له دې هسې ښۀ ژوندونه به ترهېږي مرزا انصاري
**ترهېدلے** :- (ت+ رو+ هې +د +لے ) اِپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ترهېدل ، (مؤ ، ترهېدلې)اِترېدلے ، يرېدلے ، ډار شوے ، ديرے نه په دو شوے ـ
**ترهېدنګ** :- (ت+ رَ+ هې+دَ +ن +ګ ) اِآف ، پ (قاموس ) حمص اِو ـــ ترهېدنه
**ترهېدنه** :- (ت+ ر+ هې +د +نه ) اِپ ، حمص اِترېدنه ، ترهېدنګ، ترهېدۀ ، ترېدۀ ، ويرېدنه ، ډارېدنه ، د يرې نه په دو کېدنه ـ
**ترهېدُونکے** :- (ت+ ر+ هې +دُو +ن +کے ) اِپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ترهېدُونکي (مؤ : ترهېدُونکې) ويرېدُونکے ، ډارېدُونکے ، ترېدُونکے ، د يرے نه په دو کېدُونکے ـ
**ترهېدۀ**:- (ت+ رَ+ هې +ده ) اِپ ، حمص اِو ــــــ ترهېدنه ـ
**ترې** :- (ت+ ر+ ې ) اِآف: پ (قاموس) مؤ اِ په پته ـ
**ترې**:- (ت+ ر+ ې) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مؤ اِد ميچنې کوټ يا ماتم چې اوړۀ پکښې جمع کېږي ـ
**ترې** :- (ت+ ر+ ې ) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مؤ اِ د دوؤ غرونو په مينځ کښې د درياب تنګه لار ـ
**ترې** :- (ت+ رَ+ې ) اِپ ، اِس ، مؤ اِتره پرناله ، ناوه ـ
**تري** :- (ت+ رِي) اِپ ، اِس ، مؤ اِ(۱) چيني ، بُوره ، شکره (۲) غوړوالے ـ
**تُرې** :- (ت+ ر+ ې ) اِپ ، اِس ، مؤ اِسُرنا ، غوزه ، بانسري ـ
خدايه څۀ دي د کوتوال په لاس کښې ورکړم
چې شپه ورځ مې غـلـوي لـکـه تـُرې رحمٰن بابا
**ترې** :- (ت+ رې) اِپ ، حرف اِ ترېنه ، ځنې ، ورنه ، د هغۀ نه ورڅخه
**ترې** :- (ت+ رې ) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مو اِاَرې ، کچے ، کچي ، د بزې د شړلو آواز ـ
**ترياق** :- (ت+ ر+ يا +ق) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مذ اِيو عاص دارُو چې د زهرو اثر ختموي ـ
عـشـق ئـې لـه زلـفـينـو لـکه زهر د مارونو
شوري په ځيګر کښې دواړه لب ئې دي ترياق خوشحال
**تريب** :- (ت+ رې+ ب) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مذ اِتريو ، ترش ـ
**تريت** :- (ت+ رې+ ت ) اِآف: پ (قاموس) اِس ، مذ اِکل ، ګوتاوه چې په ژمي کښې غواګانو ته ورکولے شي ـ

**تریتم**:- (ت+ ري + ت +م) [آف: پ (قاموس) ص ]ناشاپي غائبېدل ، یو شی د نظر نه دنیا مه پناه کېدل.

**کېدل** :- (اَف) اص ، ناڅاپي پټېدل ، غائبېدل .

**تریتے**:- (ت+ ري+ تَے) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ]د تور مرچ په شان یوه غرئیزه ونه چې ترش والے لري کوي چې په دوائي کښې استعمالېږي ، او غریبانان خلق تر انګولې جوړوي .

**تریچے** :- (ت+ رِي+ چَے) [پ (ظفر) اس ، مذ ]و ــــــ ترُوپے .

**تریخ** :- (ت+ ري+ خ) [پ ، ص ، مذ وا ، ج: ترخهٔ (مؤ ، وا: ترخه ، ج: ترخې )]
(۱) چې خوږ نهٔ وي ،د خوږ ضد ، (۲) غصه ناک ، سخت مزاجه ، (۳) ګران ، مشکل .

هسې راته تریخ کړهٔ شیرین عمر جدائي
هــر نـفس چې نغرم خورم زهرو ګنډېر حمید

**کول** :- اص (۱) تریخول ، (۲) ګرانول ، مشکل کول .

**کېدل**:- (۱) تریخېدل ،(۲) ګرانېدل ، مشکل کېدل ،(۳)غصه ناک کېدل .

**غړپ تېرول**:- اِص (۱) تریخ ګوټ ځنبـل (۲) تکلیف او رحمت پېځـل، زغـم کول .

**تریخ بخن** :- (تریخ + بَ + خَ+ن) [پ ، اِس ص ، مذ (مؤ ، وا : تریخ بخنه ، ج: تریخ بخنې )]، چې خوند ئې تریخ شان وي .

**تـریخ تـوب** :- (تـریخ+ تـو+ ب) [پ ، ص ، مـذ] تـریخ تیـا ، تـریخ والے ، تـریخ خوندے .

**تریخ توری** :- (تریخ+ تو + ر +ی) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ]کریله.

**تریخ تیا**:- (تریخ + ت+ یا ) [پ ص ، مؤ ] وـــــــــــــ تریخ توب.

**تریخ جن** :- ( تریخ + ج + ن) [پ ص ، مذ (مؤ ، وا ، تریخ جنه ، ج : تریخ جنې (۱) تریخ بخن ، چې لږ تریخ وي (۲) غُصه ناک بنیادم.

**تـریخ خونـدے** :- (تـریخ+ خ+ وَ +ن +دَ ے) [پ ،اِس ص ، مـذ] چې خوند ئې تریخ وي ، چې خوږ نهٔ وي .

**تریخ دریاب** :- (تریخ دَ + ر+ یا +ب) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ ] سمندر ، کاړي دریاب .

**تریخ والے** :- (تریخ + وا+ لے) [پ ، ص ، مذ ] و ــــ تریخ توب.

**تریخول** :- (ت+ ري+ خ +و +ل) [پ، مص مت ] تریخ کول .

**تریخونـــــګ** :- (ت+ ري+ خ+وَ +ن +ګ) [آف: پ (قـــاموس) حمـــص ]و ــــ تریخونه.

**تریخونـه** :- (ت+ رِي+ خَ +و +نـه ) [پ ، حمـص] تـریخ کونـه ، تریخونـګ ، ترخونه .

**تریخوُونکے** :- (ت+ رِي+ خَ +وُو +ن +کـے) [پ ، اس فـاع ، مــذ ، وا ، ج: تریخوُونکي (مؤ : تریخوُونکې)] خوند تریخ کوُونکے ، ترخوُونکے .

**تریخے** :- (ت+ ري+ خے) [پ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: تریخـي ] (۱) هغـه شنه وړه شان د ډېر ترخې تېزابي مادې نه ډکه پرده یا پُوکنۍ چې د ژوندي سري د اینې سره لګېدلے وي (۲) غېرت ، تنګ .

چې رقیب په ما کینه دا ستا د مخ کا
مــګر دا لـرم دا تـریـخـے بـې اینې زهٔ حمید

**لرل** :- اِص (۱) چې تریخے لري (۲) غېرت لرل ، پراینه تریخے درلودل .

**نهٔ لرل** :- اِص (۱) چې تریخے ئې نهٔ وي ، بې تریخیه .

**پراینه تریخې درلودل**:- (اَف) اِص ، و ـــــــــــ تریخے لرل .

**تریخېدل**:- (ت+ ري+ خې +د +ل) [پ ، مص لا] (۱) ترخېدل ، تریخ کېدل ، خوند خرابېدل ،(۲) غصه کېدل ، قهرجن کېدل .

**تریخېـــدنګ**:- (ت+ ري+ خـــې+دَ +ن +ګ) [آف: پ (قـــاموس) حمـــص ]و ــــ تریخېدنه

**تریخېدنه** :- (ت+ ري+ خې +د +نه) [پ ، حمص ] (۱) تریخېدهٔ، تریخېدنګ ، ترخېدهٔ ، خوند بدلېدنه (۲) غصه کېدنه .

**تریخېـــدُونکے** :- (ت+ ري+ خـــے+دو +ن +کـــے) [پ ، مـــف ،مـــذ ، وا ، ج: تریخېدُونکي (مؤ : تریخېدونکې)] ، (۱) ترخېدُونکے ، تریخ کېدُونکے ، خوند بدلېدُونکے (۲) غُصه کېدُونکے .

**تریخېدهٔ** :- (ت+ رِي+ خې +دهٔ) [پ، حمص ] و ـــــــ تریخېدنه .

**ترېدل** :- (ت+ رې + د +ل ) [پ، مص لا] و ـــــــــــ ترهېدل .

**ترېدلے** :- (ت+ رې + د+لے ) [پ، مف ، مذ ، وا ، ج: ترېدلي(مؤ: ترېدلې)] و ـــــ ترهېدلے .

**ترېدنه** :- (ت+ رې + د +نه) [پ ، حمص ]و ــــــــــ ترهېدنه .

**ترېدُونکېن**:- (ت+ رے+ دو+ن +کے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ترېدُونکي (مؤ : ترېدُوونکې)] و ترهېدُونکے .

**ترېدهٔ** :- (ت+ رې+ده) [پ ، حمص ]و ــــــــــــ ترهېدنه .

**ترېړه** :- (ت+ ري+ ړه) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ] ترړې.

**تریز** :- (ت+ ري+ ز) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ]شمکے، یو قسم وابنهٔ .

**تریږه** :- (ت+ ري+ ږه یا ګه) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تریږې ] کلچه ، خوږ ککوړے ، په غوړو کښې پخه ډوډۍ .

**تریلے** :- (ت+ رې+ لے) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ ] حوض، تالاب، تالاؤ

**تَریناک**:- (ت+ ر+ ي +نا +ک) [پ ، ص ، مذ (مؤ، وا) تریناکه، ج: تریناکې )] ( 1 ) ترهند ، یریدُونکے (۲) زوړ باز، ساتلے باز.

چې کال تېر شي ستا د سترګو ظلم ډېر شي
تـــریـــنـــاک بـــازونـــه لا شـــوخ دې تـــر چُونه خوشحال

**تریناکه**:- (ت+ ري+ نا +که) [آف: پ (قاموس) اِس ، مو]یو قسم دغتې.

**ترینداره** :- (ت+ ري+ ن +دا +ره) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ترینداري] تینداره ، د ترهٔ ښځه چاچي .

**ترینګر** :- (ت+ رِي+ ن +ګ +ر) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] مانجه، بجه ، د موسیقۍ یوه درې ګوټېزه آله .

**ترینګلـي** :- (ت+ ري+ ن +ګ +ل +ی) [آف: پ (قـاموس) اِس ، مـؤ] تینګړې، چُټکې ، د دؤو ګوتوټک .

**ترینګلے** :- (ت+ ري+ ن +ګ +لے) [آف: پ (قـاموس) ص، مـذ ، وا ،ج: ترینګلې (مؤ : تریګلې)تریوتندے ، خړوس ، بدمزاجه ، پاتې خان .

**کېدل** :- (اَف) اص ، تریو تندے کېدل ، بدمزاجه کېدل .

**ترینګی**:- (ت+ ري+ ن +ګ +ی) [پ(سو) اس ، مؤ ]د نري آواز ډمامه چې د دروند آواز ډمامې نه ډېره وئیلې شي .

**تریو** :- ( ت + ر یو ) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج: تروهٔ ، (مؤ ، وا : تروه ، ج : تروې )] ترش

**کول** :- اص ، ترشول .

**کېدل** :- اِص ، تروېدل ، ترشېدل.

**تریوبخن**:- (تریو+ب+خ+ن) [پ، ص، مذ (مؤ، وا: تریوبخنه، ج: تریو بخنې)]
ترسکون، ترش شان خوند لرونکے۔

**تریوتریوکے** :- (تریو+ت+ري+و+کے) [پ، اس، مد] یو قسم ساګ، تروکے

**تریو تندے**:- (تریو+ت+ن+دے) [پ، ص، مذ] ګونګے تندے، د غُصې حالت، د کوکې علامه، تریومخے، بدمخے۔

**راوړل** :- اص، غُصه راتلل، غُصه کېدل۔

**نیول** :- اص، تندے ګونځې کول، غُصه کښېناستل، بدنیته کېدل، تندے تریوول۔

**تریوتوب**:- (تریو+تو+ب) [پ، ص، مذ] تریوتیا، تریووالے، تُرشي

**تریوتیا** :- (تریو+ت+یا) [پ، ص، مؤ] و - تریوتوب۔

**تریوخوږے** :- (تریو+خ+و+ږے یا ګے) [آف: پ (قاموس) اس، مذ] سکنجبین، یو قسم خوږ شربت۔

**تربوړے** :- (ت+رے+و+ړے) [آف: پ (قاموس) اس، مذ، واج: تریوړي] باوړنګ، نګوړے۔

**تریوکے**:- (ت+ري+وَ+کے) [پ(سو) اس، مذ] یو بُوټے چې خوند ئې ترش وي، تروُوکے۔

**تریومخے** :- (تریو+م+خے) [پ اس ص، مذ، وا، ج: تریومخي، (مؤ: تریومخې)] و- تریوتندے۔

**تریوناک** :- (تریو+نا+ک) [پ، اس، ص، مذ، (مؤ، وا: تریوناکه، ج: تریوناکې)] چې خوند ئې تریو وي، تریووزمه، ترش ناک۔

**تریونګولے**:- (ت+ریو+ن+ګو+لے) [آف: پ (قاموس) اس، مذ] چټني، اچار

**تریوالے** :- (تریو+وا+لے) [پ، ص، مذ] و ـــــــــ تریوتوب۔

**تریووزمه**:- (تریو+وَ+ز+مه) [پ، ص، مذ، مؤ] لږ شان تریو، تریوناک، ترش ناک، ترویدوته نژدې۔

**تریوول** :- (ت+ري+و+و+ل) [پ، مص مت] تریو کول، تُرشول، تُرش کول، تُرش جوړو۔

**تریوونه**:- (ت+رِي+و+و+نه) [پ، حمص] تریوکونه، تُرش کونه۔

**تریووُونکے**:- (ت+ري+و+وو+ن+کے) [پ، اس فاع، مذ، وا، ج: تریووُونکي (مؤ: تریووُونکې)] تریو کوُونکے، تُرش کوُونکے، تُرش جوړوونکے۔

**تریوے** :- (ت+رِي+وَ+ے) [آف: پ (قاموس) اس، مذ] د یو قسم غرئیزې وُنې تُرشې دانې۔

**تریوېدل** :- (ت+رِي+وې+د+ل) [پ، مص لا] (۱) تُرش کېدل، تروېدل (۲) خفه کېدل، غصه کېدل، سُوختېدل۔

**تریوېدنګ** :- (ت+رِي+وې+د+ن+ګ) [آف: پ (قاموس) حمص] و ـــ تریوېدنه۔

**تریوېدنه** :- (ت+رِي+وې+د+نه) [پ، حمص] تریوېدۀ، تربوندنګ، تروېدۀ، تُرش کېده۔

**تریوېدُونکے**:- (ت+ري+وې+دُو+ن+کے) [پ، مف، مذ، وا، ج: تریوېدُونکي (مؤ: تریوېدُونکې)] تریو کېدُونکے، تروېدُونکے، تُرش کېدُونکے۔

**تریوېدۀ** :- (ت+ري+وې+ده) [پ، حمص] و ـــــــ تریوېدونه۔

**تریه** :- (ت+ر+یَه) [آف: پ (قاموس) اس] د ګډو بزو د شړلو آواز چې شپانۀ ئې ورته کوي۔

**کول**:- (آف) اص، د شپانۀ ګډو بزو ته د شړلو د پاره آواز کول۔

**تړ**:- (ت+ړ) [آف: پ (قاموس) اس، مذ] (۱) شرط (۲) غُوټه، غنډه، ګنډه، (۳) د اوبو بند (۴) لویه ګټه (۵) تجویز، قرارداد۔

**تړاک**:- (ت+ړا+ک) [پ، اس، صو، مذ] تړاق، تړق، تړک، د څۀ څیز د ماتېدو آواز۔

**تړاک** :- (ت+ړا+ک) [آف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: تړاکونه] (۱) قطار (۲) ډډه، خوا، اړخ۔

**تړاکے**:- (ت+ړا+کے) [آف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: تړاکي] تړکے، لنګوټے، چوتړے، وړوکے شان لنګ چې ایله قدرې پر کوناټې پټوي او د کُشتۍ یا د لمبا په وخت کښې تړلے شي۔

**تړانګه** :- (ت+ړا+ن+ګه) [آف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: تړانګې] (۱) چیرړه، د زړې کپړې لویه نرۍ رنجه، (۲) د مزکے اوږده ترازه یا ترشه

**تړانګې برانګې** :- (ت+ړا+ن+ګې +ب+ړا+ن+ګې) [پ (سیند)، ص] ټکړې ټکړې، ذرې ذرې، ټوټې ټوټې، تړانګې تړانګې۔

**کول**:- (سیند) اص، ټوټې ټوټې کول، ټکړې ټکړې کول، ذرې ذرې کول، تړانګې تړانګې کول۔

**کېدل** :- (سیند) اص، ټوټې ټوټې کېدل، ټکړې ټکړې کېدل، ذرې ذرې کېدل، تړانګې تړانګې کېدل۔

**تړانګې تړانګې** :- (ت+ړا+ن+ګې +ت+ړا+ن+ګې) [آف: پ (قاموس) ص] و ـــــــــــ تړانګے برانګے۔

**کول**:- (آف) اص، و ـــــــــ تړانګے برانګے کول۔

**تړانګې تړانګې کېدل**:- (آف) اص، و ـــــــ تړانګے برانګے کېدل۔

**تړاؤ**:- (ت+ړا+ؤ) [آف: پ (قاموس) اس، مذ] (۱) تړاونه، د جریب د پیمانه کولو رسۍ، (۲) تعلق رشته، نسبت۔

**تړبوخه** :- (ت+ړ+بو+خه) [آف: پ (قاموس) اس، مؤ] تربوخته، هغه بدبوي چې د ګنې ګوټې له کبله په هوا کښې پیدا شي، سخا او بدبویه هوا۔

**تړپ**:- (ت+ړ+پ) [پ، اس، صو، مذ] (۱) د څۀ پلن شان څیز په مزکه د راغورزېدو آواز، خاص طور سره په اُوبو کښې راپریوتو آواز (۲) ناقلارې بې آرامي (۳) جلق تُندي۔

**تړپول** :- (ت+ړَ+پ+و+ل) [پ، مص مت] (۱) اف، ټوپلول، (۲) ناقلاره کول، بې آرامه کول۔

**تړپولے**:- (ت+ړَ+پ+وَ+لے) [پ، مف، مذ، وا، ج: تړپولي (مؤ: تړپولې)] (۱) آف: تړپلولے (۲) ناقلاره کړے، بې آرامه کړے۔

**تړپونه** :- (ت+ړ+پ+و+نه) [پ، حمص] (۱) اَف: ټوپلونه (۲) ناقلاره کونه، بې آرامه کونه۔

**تړپوُونکے** :- (ت+ړَ+پ+وو+ن+کے) [پ، اس فاع، مذ، وا، ج: تړپُوونکي (مؤ: تړپوُونکې)] (۱) اف: ټوپلوُونکے (۲) ناقلاره کوُونکے، بې آرامه کوُونکے۔

**تړپهار** :- (ت+ړَ+پ+ها+ر) [پ، اس صو، مذ] (۱) اَف: د اُوبۀ د تلو یا زغلېدو پرله پسې آواز (۲) په اوبو کښې د راغورزېدو او لاس پښې وهلو آواز۔

**ترپېدل** :- (ت+ رَ+ پې +د +ل) اپ ، مص لا(۱) اف ټوپلېدل يا ټوپلسنل (۲) ناقلاره کېدل بې آرامه کېدل۔

**ترپېدلے**:- (ت+ ر+ پې +د +لے) اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ترپېدل (مؤ: ترپېدلې] (۱) آف: ټوپلېدلے (۲) ناقلاره شوے ، بې آرامه شوے۔

**ترپېدنه**:- (ت+ رَ+ پې +د +نه) اپ ، حمص ](۱) آف: ټوپلېدنه ترپېدۀ (۲) ناقلاره کېدنه بې آرامه کېدنه۔

**ترپېدُونکے** :- (ت+ ر +پې+دُو +ن+کے) اپ ، مف ، مذ ، وا ج: ترپېدُونکي (مؤ: ترپېدُونکې] (۱) آف: ټوپلېدُونکے (۲) ناقلاره کېدُونکے ، بې آرامه کېدُونکے

**ترپېدۀ** :- (ت+ ر+ پې +دۀ) اپ ، حمص ] و ———— ترپېدنه۔

**تُرتړے**:- (ت+ ر+ ت+ړے) اپ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تُر تړي (مؤ: ترتړي)] تُوړے ، ترتړے ، تترے ، چارا ، چاړے ، هغه چې په خبرو کولو کښې ئې ژبه نښلي ، تړژبے ، مؤ۔

اے مرزا د محبت خبرې وايه
څو ګويا ژبه دې نۀ وي ترتړې

**ترتک** :- (ت+ ر+ تَ+ک) اپ ، اِس ، مذ (مؤ ، وا: ټرتکه ، ج: ترتکے] ناقلارې بې آرامي۔

**ترتکې وهل** :- اص ، د درد له کبله ډېر ناقلاره کېدل ، د دردونو نه ټوپونه وهل ، ترپېدل۔

**په ترتکو کېدل** :- اس ، ناقلاره کېدل ، ډېر بې آرامه کېدل ، په ټوپونو کېدل

**تړژبے**:- ( ت+ ر+ ژ+ بے ) [آف: پ (قاموس) اِس، مذ ، وا ، ج : تړژبي (مؤ: تړژبې)] و ———— تُرتړے۔

**ترس**:- (ت+ ر+ س) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] د لړګي يا داسې بل څيز د ماتېدو آواز۔

**ترسا** :- (ت+ ر+ سا ) [آف: پ (قاموس) اِس ، صو، مذ ] (۱) د لړګي د ماتېدو په يو مخه آواز ، (۲) ترقا د وهلو يا ماتېدلو په يومخه آواز (۳) د دوو څيزونو په خپل مېنځ کښې د جنګېدلو آواز۔

**چاؤدل**:- اص ، پرق چاؤدل ، ماتېدل ، ترک چاؤدل۔

**ترق**:- (ت+ ر+ ق) اپ ، اس صو ، مذ] و ———— ترق۔

**چاؤدل**:- اص و ———— ترق چاؤدل۔

غم فکر چې ډېر شي زړۀ خفه کا ترې چاپېر شي
ترک به سره اوچوم که څوک بند کا زما آه سکندر خان ختک

**ترک**:- (ت+ رَ+ک) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] د منړکانو د نيولو پنجره يا کوړکې۔

**ترکا** :- (ت + رَ + کا) اپ ، اس صو ، مذ ](۱) د څۀ څيز د ماتېدو په يو مخه آواز ، ترسا ، ترکهار ،(۲) د دوو څيزونو ترخپل مينځه د جنګېدلو په يومخه آواز (۳) د ټوپک د ګوليو په يومخه د چلېدلو آواز۔

**ختل** :- اص (۱) د څۀ څيز د ماتېدو په يومخه آواز ختل ، ترکا کېدل (۲) د ټوپک د ګوليو په يومخه د چلېدو آواز ختل۔

**کول**:- اص (۱) د څۀ څيز د ماتېدو په يومخه آواز کول (۲) د ټوپک د ګوليو په يومخه د چلېدو آواز کول۔

**کېدل**:- اص و ———— ترکاختل۔

**ترکه** :- (ت+ ر + که) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ] ټکه ، ډېره ، آسماني تندر ، آسماني آفت۔

**ترکه** :- (ت+ ر+ که) اپ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ترکې ] داغ ، پخکړي يا انګولي ته د سرو کړو غوړو بګار ، تُرکه ، (آف)۔

**کول**:- اص ، پخکړي يا اينګولي ته د سرو کړو غوړو داغ يا بګار کول۔

**ترکهار**:- (ت+ ر+ ک +ها + ر) اپ ، اِس ، صو ، مذ ]و ———— ترکا۔

**ترکے** :- (ت+ ر+ کے ) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] وړوکے لنګ، چوتے

**ترکے** :- (ت+ ر+کے) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: ترکي] بچوکے ، د مچو غنې د سر هغه نرے تار چې د ګتې د ويشتو په وخت پرېښوے کېږي او آواز تروُزي۔

**ترل** :- (ت+ ر+ ل) اپ ، مص ، مت ](۱) غوټه ورکول ، غنډه ورکول (۲)بندول (۳) پابند کول۔

**بند ترل** :- اص ، مزکې اُوبۀ کولو د پاره د سېلاب مخه بندول۔

**پټی ترل** :- اص ، په زخم باند پټی راڅرخول۔

**دستار ترل** :- اص ، په سر باند پټکے راڅرخول۔

**ترلے** :- (ت+ ر+ لے) اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ترلي ،(مؤ: ترلې)] (۱) غوټه ورکړے شوے (۲) بند شوے (۳) پابند شوے۔

**ترليک**:- (ت+ ر+ لي+ک) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] د څۀ خبرې په حقله د فېصلې ليک ، لوظ نامه ، اقرار نامه۔

**کول**:- (آف) ، اص لوظ نامه ليکل، د څۀ خبرې په حقله د فېصلې ليک کول

**ترم** :- (ت+ ر+ م) اپ ، ص ، مذ (مؤ ، وا: ترمه ، لږشان ګرم ، نيم ګرم ، شير ګرم ، تُومن ، (آف)] ج :مؤ۔

ترمې ترمې اوښکې تو ے مې شوې ګرېوان کښې
تېر وختونه مې د سترګو وړاندې تېر شول مطيع الله قريشي

**کول** :- اص ، ترمول ، لږشان ګرمول۔

**کېدل** :- اص ، ترمېدل ، لږشان ګرمېدل۔

**ترمبه** :- (ت+ ر+ م +به) [آف: پ (قاموس) اِس، مؤ] ناتار ، هغه ډوډۍ چې په ماستو يا شُوملو کښې ئې چوري کړي اوخوري ئې۔

**ترمتوب** :- (ت+ ر+ م+تو +ب) اپ ، ص ، مذ]ترمتيا ، ترموالے ، نيم ګرموالے ، لږشان تود والے۔

**ترمتيا**:- (ت+ ر+م +ت +يا) اپ ، ص، مؤ] و ———— ترمتوب۔

**ترَموالے** :- (ت+ ر+ م+وا +لے) اپ ، ص ، مذ ] و ———— ترمتوب۔

**ترمول** :- (ت+ ر+ م +و + ل) اپ ، مص مت ، نيم ګرم کول ، لږشان ګرمول ، لږشان تودول ، ترم کول ، ايله تاؤ ور رسول ]

**ترموُونکے** :- (ت+ ر+ م +وُو +ن +کے ) اپ ، اس فاع ، مذ ، وا ، ج: ترموونکي ، (مؤ: ترموُونکې ) ] نيم ګرم کوُونکے ، لږشان ګرموُونکے ، لږشان تودوُونکے

**ترمونه**:- (ت+ ر+ م+ و+ نه) اپ، حمص] نيم ګرم کونه ، لږشان ګرمونه ، لږشان تودوونه۔

**تَرمېدل** :- (ت+ ر+ مې +د+ ل ) اپ ، مص لا) ترم کېدل ، نيم ګرم کېدل، لږشان تودېدل ، ايله تاؤ وررسېدل۔

**تَرمېدنه** :- (ت+ ر+ مې +د+ نه) اپ ، حمص] ترمېدۀ ، نيم ګرم کېدۀ ، لږشان تودېدنه۔

**ترمېدُونکے** :- (ت+ ر+ مې +دُو +ن +کے ) اپ ، مف ، مذ، وا ، ج: ترمېدُونکي ، (مؤ : ترمېدُونکې ]نيم ګرم کېدُونکے ، لږشان تودېدُونکے۔

**ترمبدۀ** :- (ت+ړ+مې+دۀ) اپ، حمص] و ــــــــــ ترمبدنه.

**ترنګ**:- (ت+ړ+ن+ګ) اپ اس صو، مذ، وا، ج: ترنګونه] ترنګ، ټنګ، د ساز آواز، ترنګا، ټنګار.

**ترنګ** :- (ت+ړ+ن+ګ) [آف: پ (قاموس) حمص] ترنه، غوټه ورکونه.

**ترنګ** :- (ت+ړ+ن+ګ) [آف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: ترنګونه] غټ خوړند کانړے چې پرختل یا لاس ورته اچول ګران وي.

**ترنګا** :- (ت+ړ+ن+ګا) اپ، اس، صو، مذ] و ــــــــ ترنګ.

**ترنګهار**:- (ت+ړ+ن+ګ+ها+ر) اپ، اس صو، مذ] ټنګهار، د ساز پرله پسې د ټنګ ټنګ آواز.

**ترنه**:- (ت+ړ+نه) اپ، حمص] ترنګ، غوټه ورکونه، ترون.

**ترو** :- (ت+ړو) [آف: پ (قاموس) ص] اپلتے، اوتې بوتې.

**تروبے** :- (ت+ړو+بے) [آف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: تروبي] د اُوبو نلکه، بمبه.

**تروپ** :- (ت+ړو+پ) اپ، اس، صو، مذ] په اوبو کښې د څۀ څيز د لوېدلو آواز.

**ترومبے** :- (ت+ړو+م+بے) اپ، اس، مذ] ترمې شوې شُوملې.

**ترون** :- (ت+ړو+ن) اپ، اس، مذ] (۱) ترنه، غوټه ورکونه (۲) شرط، قاعده، رسم (۳) وعده، لوظ (۴) رابطه، تعلق، (۵) بندېز قومي ټينګه

که غافل وائي غافل دې يم له ياده
باري څۀ کړم د نفس په تار ترون دې — حمزه شنواري

جور جفا له اوسه نۀ دے د خوبانو په عشاقو
له ازله مقرر دے ددې قوم ترون هسې — معزالله خان

د زلفو ياد مې د کثرت د دنياګۍ کړو زړۀ تور
نن مې پکار د زړۀ ترون شو د پريشانه سر — حمزه شنواري

**کول** :- اص (۱) ترل، غُوټه ورکول (۲) وعده کول، لوظ کول (۳) بندېز کول (۴) رابطه يا تعلق پيدا کول.

**کېدل** :- اص (۱) ترلے کېدل، غوټه ورکېدل (۲) وعده کېدل ،لوظ کېدل (۳) تعلق پيدا کېدل (۴) بندېز کېدل

**ترونکے** :- (ت+ړو+ن+کے) اپ، اس فاع، مذ، وا، ج: ترُونکي، (مؤ: ترونکې)]
(۱) غُوټه ورکوونکے، دوه يا زيات څيزونه سره يو ځاے کوونکے (۲) وعده يا لوظ کوُونکے (۳) بندېز کوُونکے.

**ترونے** :- (ت+ړو+نے) اپ، اس، مذ، وا، ج: تروني، مؤ: ترونړ] د ترلو څيز

**تره** :- (ت+ړه) [آف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: ترې] (۱) لاړه (۲) سخته مزکه (۳) قصد، اراده (۴) لوظ اقرار، وعده (۵) د کاڼي تبۍ.

**ماتول** :- (ظفر) اص، خپل رسم او رواج ماتول، د خپل دود دستور خلاف کار کول.

**پرخپله تره تلل** :- (آف) اص، په خپله لار ورتلل، په خپل کار پسې تلل، د خپل رواج او دستور مطابق کار کول.

**تره** :- (ت+ړَه) اپ (بټني) اس، مؤ] قريباً يوه دوه سوه کناله لويه مزکه چې په يوې کرلے کېږي.

**ترهار** :- (ت+ړ+ها+ر) آف: پ (قاموس) اس، مذ] د ترټر د بنيادم پرله پسې خبرې.

**ترکانے** :- (ت+ړه+کا+نے) [آف: پ (قاموس) اس، مذ] يو قسم بُوټے چې توره دانه نيسي.

**ترسکے** :- (ت+ړي+س+کے) اپ(ظفر) اس، مؤ، ج، وا: ترېسکه، غېر مستعمله] کړاکونه، ناکردې، سختې نرمې.

**ترېسکې پر راتلل** :- (ظفر) اص، غمونه اوتکليفونه پر راتلل.

**تېرول** :- (ظفر) اص، کړاکُونه، زخمونه تېرول، ناکردې زغمل.

**ترېسکې** :- (ت+ړي+س+کي) [آف: پ (قاموس) اس، مؤ]و ـــــترېسکے.

**پر تېرېدل**:- (آف) اص تکليفونه او غمونه زغمل.

**ترېسمار** :- (ت+ړي+س+ما+ر) [آف: پ (قاموس) اس، مذ] (۱) ډېره ګرمي، زيات حرارت، (۲) ظفر، د تېوېک د ګولو باران.

**کېدل** :- (آف) اص، ډېره ګرمي، کېدل، زيات حرارت کېدل.

**ترېکه**:- (ت+ړي+که) [آف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: ترېکې] څرېکه، بربښ، درد، تکليف، چرېکه.

**ترے** :- (ت+ړے) اپ(ظفر) اس، مذ، وا، ج: ترې (مؤ: ترې)]چاړا، چاړے، ترژبے، ترټرے.

**تُزک** :- (ت+زُ+ک) [فا، اس، مذ](۱) انتظام، ترتيب، بندوبست (۲) شان شوکت، ټاټ باټ (۳) شاهي روزنامچه، د بادشاه د روزانه ژوند حالات

**تُزک بابري**:- (تزک+با+بَ+ري) [فا، اس معرفه]د بابر بادشاه په خپل لاس ليکلې ځاني حالات، د بابر روزنامچه.

**تُزن** :- (ت+زَ+ن) اپ (ظفر) اس، مذ (مؤ، وا:تزنه، ج: تُزنې)] (۱) تيزن، تېزن (۲) نامرد، کينه.

**تزوے** :- (ت+زَ+وے) [آف: پ (قاموس) اس، مذ]يوقسم شينکے، يو قسم وابنۀ چې شنې پاڼې ئې وي.

**تزوير**:- (ت+ز+وي+ر) [ع، اس، مذ]مکر، فريب.

**تزے**:- (ت+زے) [آف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: تزي](۱) د تنبو د ستنې څوکه (۲) بمبل.

**تَږم** :- (ت+ژ+م+يا ت+ګ+م) [آف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: تږمُونه]بدبوي، سخا بوي، تګم، ورږم.

**تږمجن** :- (ت+ژ+م+ج+ن يا تَ+ګ+م+ج+ن) [آف: پ (قاموس) اس ص، مذ(مؤ: وا: تږمجنه، ج: تږمجنې]بدبويه ورږم جن، ورږمې، سخابوي لرُونکے

**تږے** :- (ت+ژے يا ت+ګے) اپ، ص، مذ، وا، ج: تږي (مؤ: تږې)] (۱) تندے آخستے، د اُوبو څښلو خواهش لرونکے (۲) خواهشمن، ليواله.

لکه تږے په صحرا کښې وي اوبو ته
ستا ليدو ته زما هسې مشتاقي ده — کامګار خټک

**کول**:- اص، تنده ورکول، اوبۀ نۀ ورکول.

**کېدل** :- اص (۱) تندے اخستل د اُوبو څښلو خواهش لرل (۲) د څۀ څيز حاصلولو خواهشمن کېدل، لېواله کېدل.

**تږے والے** :- (تږے+وا+لے) اپ، ص، مذ] تنده.

**تس** :- (ت+س) اپ (ګن) ص، مذ (مؤ، وا، تسه، ج: تسې] (۱) تش، خالي(۲) ډډ، ګوګ.

**کول** :- (آف) اص، تسول، تشول، خالي کول.

**کېدل**:- (آف) اص، تسېدل، تشېدل، خالي کېدل.

**تس** :- (ت+س) [آف: پ (قاموس) اس، مذ] د اوبښ د شړلو آواز.

**تس کول** :- (اَف) اص ، اوبش شړل -

**تسبک** :- (ت+ س+ بَ +ک ) [آف: پ (قاموس) مذ ] (۱) کلک (۲) ښغ ،سیخ

**تسبه** :- (ت+ س + بـه ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تسبې ]تسپه ، پـه یـو مـزي کښې پیلې هغه سل دانې چې وظیفه پر کولې شي -

**تسبې اړول** :- اص ، تسپې وئیل ، وظیفه کول -

**تسبې ګرځول**:- اص ، د ځان سره تسپې ګرځول ، وظیفې کولو د پاره د ځان سره تسپې ساتل -

**تسپه** :- (ت+ س+ په ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تسپې ] و ـــــــ تسبه

**تسبیح** :- (ت+ س+ بي +ح ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج: تسبیحات ] سبحان الله وئیل ، د خدا ے پاک ثنا صفت -

**کول** :- اص ، د خدا ے پاک ثنا صفت کول -

له ازلـه ئې رند رند زاهد زاهد کړ

زۀ به ډکې پیالې اخلم تۀ تسبیح کړه خوشحال خان

**وئیل** :- اص ، سبحان الله وئیل ، د خدا ے پاک ثنا صفت وئیل ،ج-

سنګریزو ددۀ په لاس کښې تسبیحات دے

په ایمائې په آسمان کښې قمر شق شۀ کامګار خټک

**په تسبیح شُوندې خوځول** :- اص تسبیح وئیل ، رو رو وظیفه کول -

**تسخیر** :- (ت+ س+ خي +ر ) [ع ، اس ، مذ ]مُسخر کول، قابو کښې راوستل ، تابع کول ، راګیرول -

**تسکوره** :- (ت+ س+ کو+ره ) [پ ،اس ، مؤ ، وا ، ج: تسکورې]

(۱) د بوټـو ایسـتلو رمبـه یـا کـدالی ، کسـی (۲) اَف: کـوډر ، پـاړه ، کره ، چارې -

**تسکین** :- (ت+ س+ کي +ن ) [ع ، اس ، مؤ]تسلي ، آرام ، سود ، اطمینان -

چې په زړۀ مې ستا د مینې آتش بل شۀ

کناره مې له زړه صبر تسکین کښېښود کامګار خټک

**کېدل** :- اص ، سود کېدل ، تسلي کېدل ، آرام کېدل -

**تسلسل** :- (ت+ س+ ل +س +ل ) [ع، اس ، مذ ] پرله پسې والے -

په خوشۍ پسې غم خوند د خوشۍ زیات کړي

کـړي بـې خـونـده د خـونـدونـو تسلل زړۀ مطیع الله قریشي

**تسلّي** :- (ت+ س+ ل +لي ) [ع ، اس ، مؤ ] تسلّه ، سود ، اطمینان -

**کول** :- اص ، تسله کول ، اطمینان کول -

**تسلي کېدل** :- اص ، تسلّه کېدل ، اطمینان کېدل ، تسکین کېدل -

**ورکول** :- اص ، تسله ورکول ، د صبر وینا کول ، اطمینان ورکول -

**تسلیم**:- (ت+ س+ لي+م) [ع ، اس ، مذ ] (۱) منلے شـوے ، قبـول (۲) حوالـه کړے

همېشه په زړۀ خوشحال اوسه بې غمه

پـه اخـلاص چـې ودانـا وته تسلیم ئې خوشحال خان

**کول**:- اص (۱) منل ، قبلول (۲) سپارل ، حواله کول -

**کېدل**:- اص (۱) منلے کېدل ، قبلېدل (۲) سپارلے کېدل ، حواله کېدل -

**تسمه** :- (ت+ س +مَه ) [فا ، ا ، مؤ ، وا ، ج: تسمې] د څرمنې اُوږده نرۍ ربنبه

**تسمه غوړ** :- (تسمه + غ+ و +ړ ) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ] هغـه مـوم یـا تېـل چې موچي تسمې پر غوړوي -

**تس نس** :- (ت+ س+ ن +س) [پ ، فا: تهس نهس ، ص، ن] ګډوډ ، تباه برباد ، یوخوا بل خوا -

**کول**:- اص ، ګډوډ کول ، بربادول ، یوخوا بل خوا کول -

**کېدل** :- اص ، ګډوډ کېدل ، بربادېدل ، یوخوا بل خوا کېدل -

**تســو** :- (ت+ سُـو ) (۱) یـونیم انـچ (۲) د مزکـې هغـه ورې نـه وړه حصـه چې نۀ تقسمېږي -

**تســول** :- (ت+ س+ و+ل) [پ (ګـن) مـص مـت ] (۱) تشـول ، خـالي کـول (۲) غـورزول ، لکـه "نیکي اوکړه پـه دریـاب کښـې ئـې تسـه کـړه " (۳) ډز کول -

**تسونس** :- (ت+ سُو+ ن +س) [آف: پ (قاموس) ص ، مذ] د خوراک څیز چې ډېر زر خرڅ شي یعني ختم شي -

**کول** :- (اَف) اص ، د خوراک څیز ډېر زر ختمول -

**تسـونه** :- (ت+ س+ و+نـه) [پ (ګـن) حمص ] (۱) تشونه ، خالي کونـه (۲) ډز کونه

**تســوُونکے** :- ( ت + سَ + وُو +ن +کـے ) [پ (ګـن) اس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: تسـوُونکي (مـؤ: تسـوُونکې) ] (۱) تشـوونکے ، خـالي کـوُونکے (۲) ډز کوونکے -

**تسیا**:- (ت+ س+ یا) [آف: پ (قاموس) ص ]بې خوده ، بې هوشه -

**کول**:- (اَف) اص ، بې خوده کول ، بې هوشه کول -

**کېدل** :- (اَف) اص بې خوده کېدل ، بې هوشه کېدل -

**تسېدل** :- (ت+ سې + د +ل) [پ (ګن) مص لا ]تشېدل ، خالي کېدل -

**تسېدنه**:- (ت+ سې+ د+نه ) [پ (ګن) حمص ]تشېدنه ، خالي کېدنه -

**تسېدُونکے** :- (ت+ سې + دُو+ن +کے) [پ (ګن) مف ، مذ ، وا ، ج: تسېدُونکي ، (مؤ: تسېدُونکې) تشېدُونکے ، خالي کېدُونکے ]

**تش** :- (ت+ ش) [پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا : تشه ،ج: تشې] (۱) تس خالي ، (۲) ډډ ، ګوګ -

**بازو** :- اص ، خالي لاس ، بې د څۀ اَسرې -

**بُوس بادول**:- مح ، بې مطلبه خبرې کول ، لاهې وهل ، ډوزې ویشتل ، داسې خبرې کول چې د حقیقت نه لرې وي -

**پوګ** :- اص (۱) پرسېدلے ، بې جُسه (۲) یرندُوکے ، بېکاره -

**په تور**:- اص ، فضول ، بې فائدې -

**کدو**:- اص ، بې مغزه سړے ، احمق ، دوړې مار -

**کول** :- اص (۱) تشول ، خالي کول ، (۲) ډډ کول ، ګوګ کول -

**تش کېدل** :- اص (۱) تشېدل ، خالي کېدل (۲) ډډ کېدل ، ګوګ کېدل -

**تش**:- (ت+ ش) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تشُونه ، تشان ] د جامو وینځلو د پاره لوے بنانک -

تس په خیال مې ستا د حسن زړۀ درزېږي

کـېفـیت بـه دې لاڅۀ وي په دیدن کښې مطیع الله قریشي

**تش بارُو** :- (ت+ ش+ با +رُو ) [آف: پ (قاموس) اس ، مذ]یو قسم لامبو -

په دا مېنځ کښې یو عظیم دریاب بهېږي

تـش بـازو بـه پـورې نۀ اوځي بې شنازه خواجه محمد بنګش

**تـش بـازي** :- (ت+ ش+ بـا +زي) [پ ، اس ، مؤ ] بغېـر د شـناز نـه پـه سـیند پورې وتل -

**تش بانیے** :- ( ت + ش + با +ن + یَے ) [ پ (ظفر) اس ، مذ ، وا ، ج : تش بـانیي ]بې پنډه ، بې سامانه ، هغه سړے چې د مزل په وخت ورسره څۀ کډه نۀ وي -

په مزل کښې د دنیا پېتې گرانېږي
وابنادي ده په دې لاړې د تش بانې　　جناب کاکا خېل

**تشبیه** :- (ت+ ش+ بي +ه) [ع ، اِس ]د یو څیز مثال د بل څیز سره ورکول.

**تش پانې** :- (ت+ ش+ پا+ن +ړے ) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: تش پانې ، (مؤ : تش پانې) ]بې وسلې مجاهد ، د جنگ په وخت کښې بې وسلې سړے.

**تشتوب** :- (تش + تو+ب) [پ ، ص ، مذ]تشوالے ، خالي والے.

**تشتور** :- (تش+ تو+ر) [پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا : تشه توره ، ج: تشې تورې)] (۱) بالکل خالي ، بېخي تش (۲) ناکام.

**درول** :- اِص (۱) بېخي خالي کول (۲) خالي لاس پرېښودل.

**درېدل** :- اِص (۱) بېخي خالي کېدل (۲) خالي لاس کېدل.

**راتلل** :- اِص (۱) خالي لاس راتلل (۲) ناکام راتلل.

**کول** :- اِص ، خالي کول

**کېدل** :- اِص ، خالي کېدل.

**تشتینه** :- (ت+ ش+ تي +نه) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تشتینې ] د گېورته غوښه.

**تشخیص** :- (ت+ ش+ خي+ص) [ع ، اِس ، مذ ] (۱) مقررول ، ټاکل (۲) د مرض معلومول ، (۳) اندازه لگول.

**تشدّد** :- (ت+ ش+ د +د ) [ع، اِس ، مذ ]سختي ، زیاتي ، جبر.

**تشدید** :- (ت+ ش+ دي +د ) [ع، اِس ، مذ]د شدّ علامت ، د یو جنس دوه حرفونه یو لیکل او دوه لوستل.

**تشریح** :- (ت+ ش+ رِي+ح) [ع، اِس ، مذ]وضاحت ، شرح بیانول ، په ښهٔ ډول د څهٔ څیز بیانول.

زهٔ که بد یم هم د یار د سترگو تور یم
و هر چا وته زما د عیب تشریح کړه　　خوشحال خان

**تشریف** :- (ت+ ش+ رِي+ف) [ع، اِس ، مذ] شرف ، عزّت ، لوے والے ، دروند والے

**راوړل** :- اِص ، راتلل.

کمینی کبریا یار راکړهٔ په خوا کښې
که بادشاه راوړ گدا کره تشریف　　حمید

**کښېښودل** :- اِص ، کښېناستل.

**تشفي** :- (ت+ ش+ ف +في) [ع ، اس ، مؤ ]تسلي ، سکون ،دلجمعي

**تشکارل** :- (ت+ ش+ کا+ر+ل) [آف: پ (قاموس) مص مت] د جنگ د پاره سپے پارول ، سپے ایش کول ، کشکارل.

**تش کالبوت** :- (ت+ ش+ کا+ل +بُو +ت) [پ ، ص ، مذ] (۱) خالي جُثه ، خالي بدن ، تش گوگ (۲) بې ښې بې توبنې ، بې بُوده.

دم قدم د خپل خواهش راکښې هېڅ نشته
کاغـذي روغ کـړے بـوت يم تش کالبوت　　حمید

**تشکیل** :- (ت+ ش+ کي+ل) [ع ، اس ، مذ] جوړښت ، ساخت.

**تش گوگ** :- (ت+ ش+ گو +گ) [پ (ب، خ) ص ، مذ] و- تش کالبوت.

**تش لاس** :- (ت+ ش+ لا +س) [پ ، ص ، مذ] (۱) خالي لاس ، (۲) بې پیسې بې ټکې ، غریب ، خوار ، (۳) بې وسلې چې په لاس کښې ئې وسله نهٔ وي.

**تش لاسے** :- (ت+ ش+ لا+سے) [پ ، اِس ص ، مذ ، وا ، ج: تش لاسي (مؤ : تش لاسې)] (۱) غریب ، خوار (۲) بې وسلې.

**کول** :- اِص (۱) غریبول ، خوارول ، (۲) بې وسلې کول.

**کېدل** :- اِص (۱) غریبېدل ، خوارېدل (۲) بې وسلې کېدل.

**تش لباس** :- (ت+ ش+ لِ+با +س) [پ ، ص ، مذ ] خالي خوشامنده ، د ظاهرداري خبرې.

زهٔ و تا کومه اوره التماس
غلم مه شه د دنیا په تش لباس　　خواجه محمد بنگش

**تش ناب** :- (ت+ ش+ نا +ب) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] غسل خانه.

**تشنگ** :- (ت+ ش+ ن +گ) [اپ تر ، اِس ، مذ ]تږے والے ، تشنگي.

چې وهلے وي تشنگ د یار د هجر
تسلیل ئې د وصال په کوثر نهٔ شي　　حمید

**تش نوم** :- (ت+ ش+ نو +م) [اپ، ص ، مذ] خالي نوم ، صرف نوم.

**تش والے** :- (ت+ ش+ و +لے) [اپ، ص ، مذ ] تشتوب ، خالي والے.

**تشوکے** :- (ت+ شو+ کے ) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج : تشوکي ، مؤ ، تشوکې )] خالي.

**تشول** :- (ت+ ش+ و +ل) [په مص مت ]خالي کول.

زمانه به خپل ترکش دربانديې تش کا
تا به درست له غشو ډک کا لکه موخه　　خواجه محمد بنگش

**زړهٔ تشول** :- اِص ، د زړهٔ براس ویستل ، په خبرو ټېر یخول.

**تشونگ** :- (ت+ ش+ وَ+ن +گ) [آف: پ (قاموس) حمص ] و ــــــــ تشونه.

**تشونه** :- (ت+ ش+و +نه ) [اپ، حمص ]تشونگ، خالي کَونه.

**تشوونکے** :- (ت+ ش+ وو+ن +کے) [اپ ، اِس فاع ، مذ ، وا، ج: تشوونکي ، (مؤ : تشوُونکې) ]خالي کوونکے ، تشوُونے.

**تشوُونکے** :- ( ت + ش+ وُو +نے) [اپ ، فاع ، مذ ، وا، ج: تشوُوني (مؤ: تشوُونې)] وــــــــــ تشوُونکے.

**تَشویش** :- (ت+ ش+ وِي +ش) [افا ، اِس ، مذ ] پریشاني ، فکر، سوچ.

**تشه** :- (ت+ شه ) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تشې ] (۱) د تش مؤنث ، خالي (۲) فضا ، خلا (۳) بېخي ، سراسر.

**تشه** :- اِص ، خالي خالي ، صرف.

**توقه** :- (سو) اِص (۱) تشه کوکه ، د وړې گېرچاپېر پټخي چې ورېے تر وِتے وي (۲) بېکاره او بې خونده کس.

**قصه** :- اِص ، خالي قصه ، هسې خبره.

مینه څهٔ ټوقه مسخره خو نهٔ ده
دغـه قصه تشه قصه خو نهٔ ده　　طاهر کلاچوي

**تَشه ورغ** :- (تشـه + و+ رَ +دز ) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ] د خالي ورغ ، سینچر ، خیالي ، چنړ چنړ.

**تَشهیر** :- (ت+ ش+ هي+ر ) [ع ، اِس ، مذ](۱) مشهوري ، شهرت ورکونه (۲) د چا په غلط کار کولو د خلقو د وړاند شرمونه.

**تشے** :- (ت+ شے ) [اپ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ، تشي ]د پُوښتو لاتدینی حصه.

**تشبدل** :- (ت+ شي + د +ل) [اپ، مص لا]خالي کېدل ، تش کېدل.

**تشبدنگ** :- (ت+ شي + دَ +ن +گ) [آف: پ (قاموس) حمص ] و ـــتشبدنه.

**تشبدنه** :- (ت+ شي + د+نه ) [اپ ، حمص ]خالي کېدنه ، تشبدنگ

**تشبدُونکے** :- (ت+ شي+ دُو+ن +کے ) [اپ ، مف ، مذ ، وا، ج: تشبدُونکي ، (مؤ : تشبدُونکې)] خالي کېدُونکے، تشبدُونے.

**تشېدونې** :- (ت+ شېي+ دُو+نې) اِپ ، مف ، مذ ، وا ، ج : تشېدُوني (مؤ: تشېدُوني) و ـــــــ تشېدُونکې ـ

**تښتکې** :- (ت+ ښ+ ت +کې ) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] کوډې ، د سپو یا چرګو چرګانو د اُوبو څښلولوښې ـ

**تښتن** :- (ت+ ش+ تَ+ن یا ت +خ +تَ +ن) [پ، اِس ، مذ] څښتن ، بادار ، مالک ، آقا ـ

چې تښتن مې د خدمت حقله په غوږ کړه
په ښادی کښې لـه جمله غمه آزاد یم — مرزا انصاري

**کول** :- اِص ، څښتن کول ، مالک کول ، بادار کول ، آقا جوړول ـ

**کېدل**:- اِص ، څښتن کېدل ، مالک کېدل ، بادار کېدل ، آقا جوړېدل ـ

**تښتند** :- (ت+ ښ+ ت+ن +د ) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ (مؤ ، وا : تښتنده ، ج: تښتندې) ] تښتې ته تیار ، تښتېدُونکې ـ

**تښتول** :- (ت+ ش+ ت +و +ل یا ت +خ +ت +و +ل) [پ ، مص ، مت] (۱) تشتول ، په منډه اخستل زغلول ، اغوا کول (۲) لرول ، شکست ورکول ، پَړول ـ

**تښتولې** :- (ت+ ش+ ت +وَ +لې یا ت +خ +ت +و +لې ) [پ، مف ، مذ ، وا ، ج: تښتولي (مؤ : تښتولې)] (۱) زغلولې په منډه اخستې بېولې (۲) اغوا کړې (۳) لرکړې ،پړ کړې ، شکست ورکړې ـ

**تښتونګ** :- (ت+ ښ+ ت +و +ن +ګ) [آف: پ (قاموس)حمص]و ـــ تښتونه

**تښتونه**:- (ت+ ش+ ت +و +نه یا ت +خ +ت +و +نه ) [پ،حمص ] (۱) تښونه ، تښتونګ ، زغلونه ، په منډه اخستنه (۲)په زور بیونه ، اغوا کونه (۳) لرکونه ، پړونه ، شکست ورکونه ـ

**تښتوُونکې** :- (ت+ ش+ ت +وُ +ن +کې یا ت +خ +ت +وو +ن +کې) [پ ، اِس فا ع ، مذ ، وا ، ج: تښتوُونکي ، (مؤ: تښتوونکې)] (۱) زغلوُونکې په منډه اخستُونکې ، تښوُونکې (۲) په زور بیوُونکې ، اغوا کوُونکې (۳) لروُونکې ، پړوُونکې ، شکست ورکوُونکې ـ

**تښتېدل** :- (ت+ ش+ تې +د +ل یا ت +خ +تې +د +ل) [پ ، مص لا] (۱) تښتېده کول ، زغلېدل ، منډه کول ، تښېل ، (۲) د ښځې متیېزه کول (۳) د څهٔ خبرې یا کار نه ځان بچ ساتل (۴)لرېدل ، شکست خوړل ، پړېدل ـ

کـه کـم عـقل کـه کانائې که هوښیار ئې که څانائې
د میر باز غوندې ورزغله خوشحال غوندې ترې تښته

**تښتېدلې** :- (ت+ ش+ تې +دَ +لې یا ت +خ +تې +دَ +لې ) [پ ، مف ، مذ ، وا، ج: تښتېدلي (مؤ: تښتېدلې)] (۱) زغلېدلې ، په تښتېته تللې ، تښلې ، په منډه شوې ، (۲) لَر شوې پړ شوې شکست خوړلې ـ

**تښتېدنګ** :- (ت+ ښ+ تې +دَ +ن +ګ) [آف: پ (قاموس)حمص] و تښتېدنه ـ

**تښتېدنه** :- (ت+ ش+تې +د +نه یا ت +خ +تې +د +نه ) [پ، حمص] (۱)تښتېدنګ، تښتېدهٔ ، زغلېدنه، تښتېته کونه ، تښېته ، (۲) لوېدنه ، پرېدنه ، شکست خوړنه ـ

**تښتېدُونکې** :- (ت+ ش +تې +دُو +ن +کې یا ت +خ +تې +دو +ن +کې ) [پ ، فا ، مذ ، وا ، ج: تښتېدونکي)] (۱) زغلېدُونکې ، تښتېته کوُونکې ، تښوُنکې ، منډه کوُونکې (۲) لرېدُونکې ، پرېدُونکې ، شکست خوړُونکې ـ

**تښتېدهٔ** :- (ت+ ش تې ده یا ت +خ +تې +ده)[پ، حمص]و ـــــــ تښتېدنه

**تښځ** :- (ت+ ښ+ دز) [آف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ]تخز، ترښځ ـ

**تښل**:- (ت+ ښ+ ل) [آف: پ (قاموس) مص مت] تښېدل ـ

د خوښې پیاله په لاس کښې نن زما ده
در زحـمـت راڅـخه وتـښل زم هـم — سکندر خان ختک

**تښلې** :- ( ت + ښ +لې )[آف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: تښلي (مؤ: تښلې] و ـــــــ تښتېدلې ـ

**تښنه** :-(ت+ ښ+ نه) [آف: پ (قاموس) حمص ] و ـــــ تښتېدنه ـ

**تښول** :- (ت+ ښ+ و+ل) [آف: پ (قاموس) مص مت ] و ـــ تښتول ـ

**تښولې** :- (ت+ ښ+ وَ+لې) [آف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ج: تښولي (مؤ : تښولې)] و ـــــــــ تښتولې ـ

**تښوُنکې** :- (ت+ ښُو+ ن +کې ) [آف: پ (قاموس) فا ، مذ ، وا ، ج: تښوُنکي (مؤ : تښوُنکې)] و- تښتېدُونکې ـ

**تښونه** :- (ت+ ښ+ و +نه) [آف: پ (قاموس) حمص ] و- تښتونه ـ

**تښوُونکې** :- (ت+ ښ+ وُو+ن +کې )
[آف: پ (قاموس) اِس فاع ، مذ ، وا ، ج: تښوؤنکي (مؤ: تښوونکې)] و- تښوونکې ـ

**تَصدیق** :- (ت+ ص+ دي+ق) [ع، اِس ، مذ ] (۱) رښتیاوالې (۲) ثبوت (۳) ګواهي ، شهادت ـ

دا سفر به بې مرشده کړې نهٔ شې
بیا له پیره فائده نشته بې تصدیق — مرزا انصاري

**کول** :- اص (۱) رښتیا ثابتول (۲) ګواهي کول (۳) د تحصیلدار د زمکې په انتقال د مُدعي او مُدعا علیه د وړاند دستخط کول ـ

**کېدل** :- اص (۱) رښتیا ثابتېدل (۲) ګواهي کېدل (۳) د تحصیلدار د زمکې په انتقال د مُدعي او مُدعا علیه د وړاند دستخط کول ـ

**تصرف** :- (ت+ ص+ ر +رُ+ف) [ع، اِس ، مذ] (۱) قبضه ، اختیار (۲) څهٔ تبدیلي راوستل ، ګوتې پکښې وهل ـ

**تصغیر** :- (ت+ ص+ غي +ر) [ع، اِس ، مذ ] (۱) ورکوټوالې ،کوتاهي (۲) په قواعد کښې هغه اسم ذات چې کم والې یا ورکوټوالې تر نه ظاهرېږي ـ

**تَصفیه** :- (ت+ ص+ ف +یه) [ع، اِس ، مؤ ] (۱) صفائي (۲) فیصله (۳) بې باقي

**تصنّع** :- (ت+ صَ+ ن +نُ +ع) [ع ، اِس ، مذ] (۱) ظاهري نمائش ځان ښودنه (۲) فریب ،ټګي ـ

**تصنیف** :- (ت+ ص + ني + ف) [ع ، اِس ، مذ ، وا ، ج : تصنیفونه ] څهٔ کتاب وغېره لیکل ـ

تسلسل به مې د مینې باطل نهٔ کړې
پـه دا باب که کتابونه کړې تصنیف — حمید

**تصوّر** :- (ت+ صو+ وُ+ر) [ع ، اِس ، مذ ] خیال ـ

تصور چې ئې د ستا د شونډو اوکړو
د شفق د ناوې سرې شوې له غم سترګې — طاهر کلاچوي

**تصوّف** :- (ت+ صو+ وُ+ف) [ع، اِس ، مذ ] (۱) د نفس د خواهش نه پاکېدل (۲) هغه علم چې د هغې په ذریعه د زړهٔ صفائي حاصلېږي

**تَصویر** :- (ت+ ص+ وي +ر) [ع ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تصویرُونه ] انځور ، نقش ، بُت ، صورت ، خاکه ، عکس ، شکل ، فوټو ـ

**اخستل** :- اِص ، فوټو اخستل ، عکس اَخستل ـ

**جوړول**:- اِص ، فوټو یا عکس تیارول ، خاکه جوړول ـ

**ویستل** :- اَص ، فوټو راکښل ، عکس ویستل ـ

**تضاد** :- (ت+ ضا+ د) [ع ، اِس ، مذ ] (۱) د یو بل ضد ، مخالف، (۲) د نظم او نثر هغه صنعت چې مخالف لفظونه پکښې یوځای وي ـ

**تضمین** :- (ت+ ض+ مي +ن ) [ع، اِس ، مذ] (۱) شاملول ، یوځای کول (۲)

په شاعرۍ کښې د چا په شعر مصرعې یا بندُونه جوړول.

**تعارف** :- (ت+ عا+ رُ +ف) [ع، اِس، مذ]پېژندګلو، واقفیت.

**تعاقب** :- (ت+ عا+ قُ +ب) [ع، اِس، مذ] ورپسې تلل، د چا په پل روانېدل، پیروي.

**تعالي** :- (ت+ عا+ لا) [ع، اِس، مذ] لوړ، اُوچت، د سترې مرتبې خاوند، الله تعالي.

**تعاون** :- (ت+ عا+ وَ +ن) [ع، اِس، مذ]مدد، ملګرتیا، مرسته.

**تعبیر** :- (ت+ ع+ بي +ر) [ع، اِس، مذ ](۱) بیانول (۲) د خوب نتیجه ښئیل

خوب د لېوني یم د تعبیر لباس مې چېرته
نۀ ځان ته وریاد شومه نۀ چاته د وینا شومه — حمزه شنواري

**تعجب** :- (ت+ عَ + ج +جُ +ب) [ع، اِس، مذ ]حېرانګي، حېرانتیا.

دا هم ځاے دې تعجب دے که ئې وینې
چې ګیدړ په وازدو ډک وړي شېران — خوشحال بابا

**کول** :- اِص، حیرانګي ظاهرول.

**کېدل** :- حېرانتیاظاهرېدل.

**تعجیل** :- (ت+ ع +جي +ل) [ع، اِس، مذ ] جلتي، جلدي، بیړه، تادي، تلوار، تلوسه.

کــه سفر د طریقت دې له ابد وي
په تعجیل د طبیعت له سرایه اوځه — مرزا انصاري

**تعداد** :- (ت+ ع+ دا+د) [ع، اِس، مذ ](۱) شمار، ګڼ، ګنتري (۲) اندازه تخمینه.

**تعریف** :- (ت+ ع+ رِي +ف) [ع، اِس، مذ، وا، ج: تعریفُونه] (۱) صفت، مدح، خوبي، ستائنه، شاباسے (۲) پېژندګلي، شناخت.

**کول** :- اِص، صفت کول، ستائنه کول، مدح کول، خوبي بیانول، شاباَسے ورکول.

**کېدل** :- اِص، صفت کېدل، ستاینه کېدل، مدح کېدل، خوبي بیانېدل، شاباَسے ورکېدل.

**تعزیت** :- (ت+ ع+ ز +يَ +ت) [ع، اِس، مذ] عُذر، پاتا، د مړي لاس نیوے، د مړده د خپلوانو سره غم رازي.

**کول** :- اِص، پاتاکول، د مړي لاس نیوے کول.

**کېدل** :- اِص، پاتا کېدل، د مړي لاس نیوے کېدل.

**تعزیر** :- (ت+ ع+ زِي +ر) (۱) تاوان، سزا (۲) دبکه، دړکه

**تعزیرات** :- (ت+ ع+ زِي +را +ت) [فاتر، اِس، ج ]د فوځدارۍ د قانون کتاب، لکه: تعزیرات پاکستان.

**تعزیه** :- (ت+ ع+ زِ+يَه) [ع، اِس، مؤ، وا، ج: تعزیې](۱) غم رازي تعزیت، (۲) د حضرت امام حسین رضي الله عنه د روضه مبارکې نقل چې په عاشوره کښې د بانس، رنګدار کاغذونو او پڼې نه جوړوي.

**اُچتول** :- اِص، د عاشورې په ورځ د امام بارې نه د تعزیې جلوس ویستل، تعزیه ویستل.

**ښخول** :- اِص، د عاشورې په ورځ د جلوس ویستو نه پس د تعزیې نقل په زمکه کښې ښخول.

**ویستل** :- اِص، و ــــــــــــ تعزیه اُچتول.

**تعزیه دار** :- (تعزیه + دا+ ر) [فاتر، اِس، مذ](۱) غمجن (۲) هغه څوک چې تعزیه اُوباسي.

**تعزیــه داري** :- (تعزیــه +دا+ رِي) [فـاتر، اِس، مـؤ] (۱) غمجـن تـوب، تعزیـه جوړول، تعزیه ویستل.

**تعصب** :- (ت+ ع+ ص +صُ+ب) [ ع، اِس، مذ](۱)مرسته، طرفداري، د مذهب یا نسل په وجه د چا پره، (۲) کرکه، کینه، بغض.

**تعطیل** :- (ت+ ع+ طي +ل) [ع، اِس، مذ ](۱) چُټي، رُخصت (۲) د مېلې ورځ، (۳) بېکاري.

**تعظیم**:- (ت+ ع+ ظي+م) [ع، اِس، مد ] (۱) لوړ والے، ادب، عزّت، دار مدار، خاطر (۲) سلام.

لاس په تعظیم ورته عیسٰی ابن مریم اېښے دے
ستا په سینه کښې چې خداے خپل اسم اعظم اېښے دے — چاربېته

**کول**:- اِص (۱) ادب کول، عزّت کول، دارمدار کول (۲) سلام کول.

**کېدل** :- اِص (۱) ادب کېدل، عزّت کېدل، دار مدار کېدل (۲) سلام کېدل.

**تعلــق**:- (ت+ ع+ ل +لُ+ق) [ع، اِس، مـذ، وا، ج: تعلّقــات] (۱) تــړون، پیوستون، سریکار، واسطه، تعلقه، (۲) رشته، خپلولي،(۳) مینه، محبت، اشنائي، یاري.

**تعلّقه** :- (ت+ ع+ ل +لُ +قَه) [پ، اِس، مؤ او ــــــــــ تَعلّق.

**تعلّقه**:- (ت+ ع+ ل+لُ+قه) [ع، اِس، مؤ](۱) علاقه، ضلع، (۲) قبضه (۳) جائیداد، جاګیر، ملکیت.

**تعلّي** :- (ت+ ع+ ل +لي) [ع، اِس، مؤ ]لوئي، بابړې، ډُوزې، لاپې.

**کـول** :- اِص، خپلـه لـوئي بیـانول، اکثـر شـاعران پـه شـعر کښـې د تعلّـي نـه کار اَخلي.

**تعلیم** :- (ت+ ع+ لي +م) [ع، اِس، مذ، وا، ج، تعلیمُونه] علم حاصلول، ښئیل او لولول.

دانـشـمـنـد دے خپل دانش لرې ساتلے
د تعلیم او د هنر اثر په خپل اثر په ذئیب — خوشحال

**حاصلول** :- اِص، علم حاصلول، زده کړه کول، تعلیم کول.

**کول** :- اِص و......... تعلیم حاصلول.

**ورکول**:- اِص، علم ورزده کول، علم لولول.

**تعلیم یافته** :- (تعلیم+ یا+ ف +تَه) [فا، اِس ]چې علم ئې حاصل کړے وي، چې په لیک لوست پوهېږي.

**تعمیــر** :- (ت+ ع+ مــي +ر) [ع، اِس، مــذ، وا، ج: تعمیرُونـه](۱) عمـارت جوړول، جوړښت (۲) مرمت کول، (۳) د ښېګړې کار کول د تخریب ضد.

**تعمیــل** :- (ت+ ع+ مــي +ل) [ع، اِس، مــذ ]عمــل کــول، حکــم منــل، فرمانبرداري

**کول** :- اِص، عمل کول، فرمانبرداري کول، حکم منل.

**کېدل** :- اِص، فرمانبرداري کېدل، حکم منلے کېدل.

**تعویذ** :- (ت+ ع+ وي+ذ) [ع، اِس، مذ، وا، ج: تعویذُونه](۱) دُعا یا د قرآن شریف آیت د کاغذ په ټکړه لیکل هغه په غاړه کښې اچول یا په سر یا په لاس تړل (۲) د قبر تیږه یا تخته چې څۀ لیک پرِ کنستے شوے وي (۳) د غاړې کالے.

**تعویذ جوړول** :- اِص ,(۱) تعویذ کول، تعویذ لیکل، د بیمارۍ یاد بد نظر نه د امان د پاَره تعویذ لیکل (۲) د قبر د پاره تخته یا کاڼے تیارول.

**کول** :- اِص، و ـــــــــ تعویذ جوړول.

**د غاړې تعویذ کول**:- مح، (۱) څۀ شے ډېر خوږ ګڼل (۲) د څۀ شي ډېر حفاظت او

ځارنه کول۔

**دغاړے تعویذ کېدل** :- مح ،(۱) د څۀ ځیز نه په هېڅ توګې نۀ خلاصېدل (۲) په چا پورې ځان تړل۔

**تعیّش**:- (ت+ ع+ ي+ش) [ع ، اِس ، مذ ]عیش۔

**تَعین** :- (ت+ عي + ن) [پ ، ع ، تعیّن ، اِس ، مذ ]مقرر۔

**تغ** :- (ت+ غ) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] (۱) د اوسپنې خول یا ټوپۍ ، (۲) د ټوپک د دارو آواز ، د غوږونو د وریتولو آواز۔

**تَغ** :- (ت+ غ) [پ (ب، خ) ، اِس ، مذ ] هغه کپړا چې په زیارت ئې د نښان په ډول لګولې۔

**لګول** :- (ب، خ) اِص ، په زیارت د کپړې نشان لګول۔

**منل** :- (ب، خ) ، اِص ، د منښتې په ډول په زیارت د کپړې د نشان لګولو اقرار کول۔

**وړل** :- (ب، خ) اِص ، زیارت ته منلې شوے نشان وړل۔

**تغار** :- (ت+ غا + ر) [فا ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تغارُونه ] (۱) لوے ښانک ، د خاورو لوے لوښے ، تغارے (۲) لوے ډوغل چې پکښې ختهه تیاروي یا پکښې خښتې خوشتوي یا پکښې چُونه سُرخي یا سیمټ تیارولے شي۔

ډک تغار د اوبو تل کښېږده و باز ته
په سارۀ غار مه دا چار کړه مقرر — خوشحال

**تغارک** :- (ت+ غا + رَ+ک) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] د تندے بیماري ، تنده غرے ، تا غارک ، دجل مرض۔

**تغارے** :- (ت+ غا + رَے) [پ ، اِس ص ، مذ ] (۱) ډېر خوراکے خېټو ، ګېډه ور (۲) جل وهلے ، تاغارے ، تغاري۔

**تغاري** :- (ت+ غا+ ري) [آف: پ (قاموس) ص ] و ــــــــ تغارے۔

**تغافل**:- (ت+ غا+ فُ+ل) [ع ، اِس ، مذ ] غفلت ، بې خبري ، بې پروائي ، پام نۀ کونه۔

ښۀ مې وینې بیا مې هم نۀ وینې خدائیګو
ژړوي مې ښکلیه ! دغه تغافل زړۀ — مطیع الله قریشي

**تغدرے** :- (ت+ غ+ دّ + رَے) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] یو غرئیز مارغۀ۔

**تغزّل** :- (ت+ غ + ز +زُ +ل) [ع، اِس ، مذ ]غزل وینا۔

**تَغمه** :- (ت+ غ +مه) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: تغمې ](۱) د چابک یا د لښتې د ګذار علامه ، موړه (۲) نخښه ، تمغه۔

دوباره به چا ژوندے لیدلے نۀ وي
چې خوړلې ئې دۀ د لاس تغمه ده — خواجه محمد بنګش

**تغمې تغمې درول** :- اِص ، دومره وهل چې په بدن ئې د وهلو نخښې ځرګندې ښکاریږي۔

**تغند** :- (ت+ غ+ن +د) [آف: پ (قاموس) اِس ، مذ] سرکن۔

**تغندے** :- (ت+ غَ + ن +دَ + ی) [آف: پ (قاموس) اِس ،مؤ ] کاسه ، ټوټې ، کُونډۍ ، یو قسم لوښے۔

**تغنول** :- (ت+ غ + ن +و +ل) [آف: پ (قاموس) مص مت ]په غوږو کښې څۀ ځیز سُور کول یا په اور باند ورتول۔

**تُغو** :- (تُ + غُو) [پ ، اِس ، مذ ]د انځیر میوه۔

**تغول** :- (ت+ غ + و+ل) [آف: پ (قاموس) مص مت ] په خراپو غوږو کښې څۀ ځیز په خراب ډول سُور کول (۲) ب خ : غورځول ، لرې ترېل۔

**تغولے** :- ( ت + غ + و +لے ) [ آف : پ (قاموس) مف ، وا ، ج: تغولي (مؤ: تغولې )] څۀ ځیز په خراپ شان په غوږو کښې سُور کړے۔

**تغونګ** :- (ت+ غ+ و +ن +ګ) [آف: پ (قاموس) حمص ] و ــــــــ تغونه

**تغونه** :- (ت+ غ + و+نه) [آف: پ (قاموس) حمص ] تغونګ ، څۀ ځیز په خراپ شان په غوږو کښې سُورکونه۔

**تغوُونکے** :- (ت+ غ +وُو +ن +کے) [آف: پ (قاموس)ذاع ، مذ ، وا ، ج: تغوُونکي (مؤ : تغوُونکې )]څۀ ځیز په خراپ شان په غوږو کښې سُور کوُونکے۔

**تُغوونه** :- (تُغو+ وُ+ نه) [پ (ظفر) اِس ، مؤ ]دا نځیروُنه۔

**تغیر** :- (ت+ غي + ر) [پ ، ص ، مذ]بدل ، دیو حال نه په بل حال کښې اوړېدلے

**تُف** :- (ت+ ف) [فا ، کلمه ، مذ ](۱) تُو ، تُولعنت یا نالت ، د لعنت او ملامت د اظهار کلمه (۲) توکاڼې۔

**کول**:- اِص (۱) تُونالت وئیل ، ملامتول (۲) توکل ، توکاڼې کول۔

**نۀ کول** :- اِص ، پروا نۀ کول۔

**تفاوت** :- (ت+ فا+وُ+ت) [فا ، اِس ، مذ ] فاصله ، لرې والے ، بېلتون ، فرق، جدائي۔

د عمل نامه به هر چا لره ورشي
د قریش تفاوت څۀ دے له حبشه — مرزا انصاري

**ورکېدل** :- اِص ، فاصله کمېدل ، جدائي لرې کېدل۔

**تفتیش** :- (ت+ ف + تي +ش) [فا ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تفتیشونه ] (۱) لټون ، څېړنه ، تحقیق ، تپوس ، پُوښتنه ،(۲) سُراغ۔

**کول** :- اِص (۱) لټون کول ، څېړنه کول ، تپوس کول (۲) سُراغ لګول۔

**تفتیش کېدل** :- اِص (۱) لټون کېدل ، څېړنه کېدل ، تپوس کېدل (۲) سُراغ لګېدل۔

**تفحص**:- (ت+ فَ + ح+حُ +ص) [ع ، اِس ، مذ ]تپوس ، پوښتنه۔

**کول** :- اِص ، تپوس کول ، پوښتنه کول۔

زۀ د کومې کومې ورانې تفحص کړم
عشق راپېښې کړې تر حد وتلې ورانې — حمید

**کېدل** :- اِص ، تپوس کېدل ، پوښتنه کېدل۔

**تفرقه** :- (ت+ ف + ر +قه) [ع ، اِس ، مؤ ] (۱) بېلتون ، جدائي ، (۲) د دوو ځیزونو ترمینځ فرق (۳) بې اتفاقي۔

**پرېوتل** :- اِص ، بې اتفاقي پیدا کېدل ، زړۀ بداوے راتلل۔

**تفریح** :- (ت+ ف+ري +ح) [ع، اِس ، مذ ](۱) خوشي ، خندا (۲) هوا خوري ، سېل ،(۳) تازګي۔

**تفریحًا** :- (ت+ ف + ري +حي) [ع ، اِس ]د خندا په ډول ، په ټوقو کښې

**تفریق** :- (ت+ ف+ ري +ق) [ع ، اِس ، مذ ](۱) فرق ، بېلتون (۲) منفي۔

زۀ دوستدار د چهار یار یم بې نقصانه
په تفریق ئې رافضي بدګوئي احمد شته — کامګار خټک

**تفسیر** :- (ت+ ف+ سي +ر) [ع ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تفسیرُونه ](۱) تشریح ، وضاحت (۲) د قرآن کریم شرح۔

زۀ نۀ تقدیر او نۀ تدبیر غواړم
د حسن او عشق تفسیر غواړم — حمزه شنواري

**بیانول** :- اِص ، د قرآن شریف شرح بیانول۔

**کول** :- اِص (۱) وضاحت کول ، تشریح کول (۲) د قرآن کریم شرح کول

**کېدل** :- اص (۱) تشریح کېدل ، وضاحت کېدل (۲) د قرآن کریم شرح کېدل۔
**تفسیر لیکل** :- اص ، د قرآن کریم شرح لیکل۔
**تفصیل** :- (ت+ ف + صي +ل) [ع ، اس ، مذ ] بیان ، تشریح ، ذکر ، وضاحت
**تفصیل بیانول** :- اص ، پوره تشریح کول ، ټول حالات ښئیل۔
**تفصیلي** :- (ت+ ف + صي +لي) [فا تر ، ص ] په تفصیل سره په وضاحت سره، مفصّل۔
**تفضیل** :- (ت+ ف+ ضي +ل) [ع ، اس ، مذ ] لوړے والے ، فضیلت ، بزرګي۔
**تفکّر** :- (ت+ ف + ک +کُ +ر) [ع ، اس ، مذ] اندېښنه ، فکر ،سوچ۔
**کول** :- اص ، فکر کول ، سوچ کول ، اندېښنه کول، غورکول۔
**تفنګ** :- (ت+ فَ + ن +ګ) [فا ، اس ، مذ ]ټوپک۔
**تفهیم** :- (ت+ ف+ هي +م) [ع ، اس ، مذ ]پوهول ، فهمول۔
**تقابل** :- (ت+ قا+ ب +ل) [ع ، اس ، مذ]مقابله ، یو بل ته مخامخ اُودرېدل۔
**تقاضا** :- (ت+ قا+ ضا ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج: تقاضې ](۱) غوښتنه ،طلب ، خواهش ، حاجت ، ضرورت (۲) تاکید۔

هغه چار به مخامخ په مخه ورشي
چې د چا د هغې چارې تقاضا ده　　　خوشحال

**کول** :- اص (۱) غوښتل ، خواهش لرل ، خواست کول ،(۲) تاکید کول۔
**کېدل**:- اص (۱) غوښتلے کېدل ، خواهش کېدل ، خواست کېدل (۲) تاکید کېدل
**تقاوي** :- (ت+ قا +وي) [ع ، اس ، مذ ]هغه رقم چې د حکومت له اړخه حقدارو خلقو ته د قرض په ډول ورکولے شي ، امدادي رقم۔
**اخستل** :- اص ، د سرکار نه قرض پیسې اخستل ، د حکومت نه پور اخستل۔
**ورکول** :- اص ، د حکومت حقدارو خلقو ته پور ورکول۔
**تقدس** :- (ت+ ق+ د +دُ +س) [ع ، اس ، مذ ]پاکي ، پاکوالے ، پاکیزګي ، تقوېٰ ، پرهېزګاري۔
**تقدّم** :- (ت+ ق + د +دُ +م) [ع ، اس ، مذ ]وړاندې کېدل۔
**تقدیر** :- (ت+ ق + دي + ر ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج: تقدیرُونه ] (۱) اندازه (۲) نصیب (۳) قسمت ، نصیب ، برخه۔

خپل تدبیر له لاسه مه پرېږده خوشحاله
کـه کـارونـه حـواله دي پـه تـقدیر

**آزمئیل** :- اص ، قسمت آزمئیل۔
**اُوده کېدل** :- اص ، بې بختي راتلل ، بد قسمته کېدل۔
**بدلېدل** :- اص ، قسمت بدلېدل۔
**راتلل** :- اص ، نصیب پوره کېدل ، مقرر وخت رارسېدل۔

مـګر عـار زما له مرګه کاندې ځکه
چې دا هسې کا راتلنه تقدیر ورو ورو　　　کامګار ختک

**تقدیري** :- (ت+ ق+ دي +ري) [فاتر ،ص ](۱) د تقدیر کار یا معامله (۲) ناڅاپي ، بې پروګرامه ، دنیا مه۔
**تقدیس** :- (ت+ ق+ دي +س) [ع ، اس ، مذ]پاکي ، پاکیزه والے ، بزرګي۔

زۀ دې تـل ویـنم زمـا د زړۀ انـیـسـه
کل حیات مې ستا د ذکر کله تقدیسه　　　مرزا انصاري

**تقدیم** :- (ت+ ق + دي +م) [ع ، اس ، مذ ]پېل ، وړاندې کېدل۔
**تقرّر** :- (ت+ قَ+ ر +رُ +ر) [ع ، اس ، مذ]مقررونه ، لګونه ، مقدرتیا ، تقرّري۔
**تقرّري**:- (ت+ ق+ ر +رُ +ي) [ع ، اس ، مؤ] و ـــــ تقرّر۔

**تقریب** :- (ت+ ق+ ري +ب) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج: تقریبُونه ] (۱)نزدیکت ، (۲) سبب ، وجه ، ذریعه ، موقعه (۳) غونډه۔
**تقریر** :- (ت+ ق+ ري +ر) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج: تقریرُونه ] خبرې اَترې ، ذکر ، بیان۔

کـه د عـشق مـحفل څۀ بره خولۀ کړې ببرته
افـلاطـون څـخه کـړې سیده تقریر کچ　　　حمید

**تقریر کول** :- اص ، خبرې اترې کول ، ذکر او بیان کول۔

"څۀ تقریر راته د صبر کړې نادانه"　　　بېدل

**کېدل** :- اص ، خبرې اترې کېدل ، ذکر کېدل ، بیان کېدل۔
**تقریري** :- (ت+ ق+ ري +ري) [فاتر ، ص ]زباني ، په خُولۀ د تحریري خلاف۔
**تقریظ** :- (ت+ ق + ري +ظ) [ع، اس ، مذ ، وا ، ج: تقریظُونه ] د چا په لیک ، مضمون یا په کتاب خپله رائے ظاهرول ، تبصره ، تنقید۔
**تقسیم** :- (ت+ ق+ سي +م) [ع، اس ، مذ ] (۱)وېش ونډ (۲) د حساب هغه قاعده چې پکښې یو عدد په بل اُووېشلے شي۔

بـیا ئـې سـترګې نـوراني په بینائي کړې
ښائسته صفت ئې ځاے په ځاے تقسیم شۀ　　　مرزا انصاري

**کول** :- اص (۱) تقسیمول ، وېشل ، ونډ کول (۲) د حساب په قاعده کښې یو عدد په بل وېشل۔
**کېدل** :- اص (۱) تقسیمېدل ، برخې کېدل ، ونډ کېدل (۲) د حساب په قاعده کښې یو عدد په بل وېشلے کېدل۔
**تقسیم نامه** :- (تقسیم+ نا+ مه) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تقسیم نامې] هغه لیکلے کاغذ چې پکښې د جائیداد د تقسیم تفصیل لیکلے وي۔
**تقسیمول** :- (ت+ ق+ سي +م +و +ل) [پ ، مص ، مت ] (۱) برخې برخې کول ، وېشل ، تقسیم کول ، ونډ کول (۲) د حساب په قاعده کښې یو عدد په بل وېشل۔
**تقسیمونه** :- (ت+ ق+ سي +م +و + نه) [پ ، حمص ](۱) برخې برخې کونه ، وېشنه ، ونډ کونه (۲) د حساب په قاعده کښې یو عدد په بل تقسیم کونه۔
**تقسیموُونکے** :- (ت+ ق + سي +مَ + وُو +ن +کے ) [پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا ، ج: تقسیموُونکي (مؤ: تقسیموُونکې) ] وېشوُنکے ، برخې برخې کوُونکے ، ونډ کوُونکے ، تقسیم کوُونکے۔
**تقسیمېدل** :- (ت+ ق+ سي +مې +د + ل) [پ ، مص لا](۱) تقسیم کېدل ، وېشلے کېدل ، ونډ کېدل ، برخې برخې کېدل ، (۲) د حساب په قاعدو کښې یو عدد په بل تقسیم کېدل۔
**تقسیمېدنه** :- (ت+ ق + سي +مې +د + نه) [پ ، حمص ]تقسیم کېدنه ، وېشلے کېدنه ، برخې برخې کېدنه ، ونډ کېدنه۔
**تقسیمېدُونکے** :- (ت+ ق+ سي +مے +دُو +ن +کے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: تقسیمېدُونکي (مؤ : تقسیمېدُونکې)] تقسیم کېدُونکے ، برخې برخې کېدُونکے ، ونډ کېدُونکے ، وېشلے کېدُونکے۔
**تقسیمېدۀ** :- (ت+ ق+ سي +مې +دۀ) [پ ، حمص ]تقسیم کېدۀ ، وېشلے کېدۀ ، برخې برخې کېدۀ ، ونډ کېدۀ۔
**تقصیر** :- (ت+ ق+ صي + ر) [ع، اس ، مذ]خطا ، قصور ، ګناه ،کمي۔
**تقصیر کول** :-اص ، ګناه کول ، قصور کول ، خطائي کول۔

څهٔ تقصير مې دې بيا کړے چې مې مرګ نه شوې تيار
ما پـــه عـمـر نـــهٔ دے کــړے بـې له عشقه بـل روزګار
کامګار ختک

**کېدل** :- اِص ، قصور کېدل ، خطائي کېدل ، ګناه کېدل ـ

**واقع کېدل** :- اِص ، څهٔ قصور تر کېدل ـ

**تقصيروار** :- (تقصير+ وا+ ر ) [فا، اِس ص ، مذ ] قصور وار ، ګناه ګار ، خطا کوُونکے ـ

**تقطيع** :- (ت+ ق+ طي + ع ) [ع ، اس ، مذ] (۱) ټوټې ټوټې کول ، ټکړې ټکړې کول (۲) د کاغذ اوږدوالے ، پلنوالے (۳) د مرکّب لفظ د حرفونو د بېلو بېلو حصو يو بـل سره لګول يا يو ځاے کول (۴) د عروضو د علم پـه اصطلاح کښې د شعر د وزن يا بحر د کتو د پاره بېلې بېلې حصې کول ـ

**تقليد** :- (ت+ ق+ لي+ د ) [ع، اِس ، مذ] نقل ، پيروي ، بغېر د فکر او سوچ نه بل پسې تلل ـ

**کول** :- اِص ، نقل کول ، پيروي کول ، بل پسې تلل ـ

**کېدل** :- اِص ، نقل کېدل ، پيروي کېدل ، بغېر د فکر او سوچ نه بل پسې تلل

**تقوا** :- (ت+ ق+ وا ) [ع، اِس ، مذ] پرهېزګاري ، د خداے پاک نه ويرېدل ، د ګناهوُنو ځان بچ کول ـ

**تقوادار** :- (تقوا+ دا+ ر ) [فا تر ، اِس ص ، مذ ، (مؤ ، وا: تقرادارہ ج: تقوا دارے)] پرهېزګار ، متّقي ، د خداے پاک نه يرېدُونکے ـ

**تقويت** :- (ت+ ق+ و + يَ +ت) [ع، اس ، مؤ] (۱) طاقت ، قوت ، زور (۲) مدت ، مدد ، مرسته ، ملاتړ (۳) تسلّه ، تسلّي ، ډاډ ـ

**حاصلول** :- اص ، (۱) طاقت حاصلول زور مُوندل (۲) مدت مُوندل (۳) تسلّه حاصلېدل ـ

**ورکول** :- اص (۱) مدت ورکول ،مرسته کول (۲) طاقت ورکول (۳) تسلّه ورکول ، ډاډ ورکول ـ

**تقويم** :- (ت+ ق+ وي + م ) [ع، اِس ، مذ ، وا ، ج: تقويمُونه ]جنتري ، کيلنډر ، هغه کتاب چې پکښې د ټول کال تاريخونه ، د ستورو مقامونه ، د سپوږمۍ او نمر د تندر نيولو حالات او موسمونو په حقله تفصيل ليکلے وي ـ

**جوړول** :- اِص ، جنتري جوړول ، د ستورو حساب لګول ـ

**تَقــي** :- (ت+ قــي ) [ع، اِس ، ص] (۱) پرهېزګـار ، متّقـي (۲) د الله پـاک نـه ويرېدُونکے (۳) د شيعه ګانو د عقيدې په مطابق پـه دولسو امامانو کښې د نهم امام نوم ـ

**تک** :- ( ت+ک) [پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا : تکه ، ج: تکې)] اکثر د رنګ سره د زيات زور او کثرت ښائيلو په ډول استعمالېږي ، لکه: تک تور ، تک سپين ـ

**تـک** :- ( ت+ک) [اَف : پ ( قاموس ) اِس ، مذ ] (۱) ملخ ، ملخے (۲) اټکل ، جاج ـ

**تُک** :- (تُ+ ک ) [ه ، اس ] (۱) اَټکل ، اَندازه (۲) قافيه (۳) فضوله خبره

**تکاړه** :- (ت+ کا+ ړَه ) [پ (ب، خ) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تکاړې] تکړه ، هوار او مهين کاڼے ـ

**تکبّر** :- (ت+ ک+ بُ + ر ) [ع، اس ، مذ] کبر ، غرور ، لوئي ، ځان ښائيل ـ

**کول** :- اِص ، کبر کول ، لوئي کول ، غرور کول ـ

**تُک بندي** :- (تُک + بَ + ن + دِي ) [فا تر ، اِس ، مؤ ] (۱) بکواس ، د ځان نه ورغږ برابرول (۲) داسې شعر وئيل چې وزن ، قافيه او رديف ئې برابر نهٔ وي

**تَکبير** :- (ت+ ک+ بي + ر ) [ع، اِس ، مذ ، وا ، ج: تکبيرُونه ] الله اکبر وئيل ، د الله پاک لوئي بيانول ـ

**کول** :- اص (۱) تکبير وئيل ، الله اکبر کول (۲) د څهٔ څيز د حلالولو په وخت الله اکبر پرې وئيل ـ

**وئيل** :- اِص ، و ـــــ تکبير کول ـ

**تکبيرونه کول** :- اِص ، د اختر او جنازې په نمانځه کښې د تکبيرونو تکرار کول

**تکبير اُولي** :- (تکبير + اُو +لي ) [ع، اِس ، ص، مذ]د نمانځه رومبے تکبير ـ

**تک تور** :- (تک + تو+ ر ) [پ ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا : تکه توره ، ج: تکې تورې)] بېخي تور ، ډېر تور ـ

**تکټکے** :- (ت+ ک + ټ + کے ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ] د ماشومانو يوه لوبه ـ

**تکـذيب** :- (ت+ ک+ ذِي + ب ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ] د ماشومانو يوه لوبه ـ

**تکذيب** :- (ت+ ک+ ذِي + ب ) [ع، اس ، مذ]دروغ ، په بل د دروغو الزام لګول

**تکرار** :- (ت+ ک+ را + ر ) [ع، اِس ، مذ ، وا ، ج: تکرارُونه ](۱) بيا بيا وينا ، مکرره وينا (۲) جګړه ، خبرې اَړول ، جنګ (۳) د شاعرۍ په اصطلاح کښې يو ټکے بيا بيا راوستل ـ

بيا بيانېږي زما په ژبه
پاتې قاصد کا درته تکرارې        خوشحال خان

**کول** :- اص (۱) بيا بيا وئيل ، مکرّر وئيل (۲) جګړه کول ، خبرې اَړول ، (۳) په شاعري کښې يو ټکے بيا بيا استعمالول ـ

**کېدل** :- اص ، (۱) بيا بيا وينا کېدل ، مکرّر وئيل کېدل ، (۲) جګړه کېدل ، جنګ کېدل (۳) په شاعري کښې يو ټکے بيا بيا راوستل

**تَکړښت** :- (ت+ ک +ړ + ښ + ت ) [پ ، ص ]تکړه والے ، تکړه توب.

**تکړه** :- (ت+ ک + ړه ) [اَف :پ (قاموس ) اس]تکاړه ، هوار او مهين کاڼے ـ

**تکړه** :- (ت+ ک +ړَه ) [ه ، اس ](۱) تکړا ،مضبوط ، په وجود روغ ، غټ پټ ، چُست چابک ، ځورب (۲) بهادر ، شاه زلمے ، نر (۳) قابل ، لائق ، ذهين ، چې پوهه ئې ښهٔ وي ـ

**کـول** :- اص (۱) مضبوطول ،ځربول ، غټول (۲) بهادر جوړول (۳) قابليت پکښې پيدا کول ، لائق جوړول ـ

**کېـدل** :- اص (۱) مضبوطېدل ، ځربېـدل ، غټېـدل (۲) بهـادر جوړېـدل ، (۳) قابليت پکښې پيدا کېدل ، لائق جوړېدل ـ

**تکړه توب** :- (تکړه + تو + ب ) [پ ، ص ، مذ ](۱) تکړه والے ، تندرستي ، وربوالے (۲) بهادري ، نرتوب (۳) قابليت ، لياقت ، ښهٔ پوهه ـ

**تکړه والے** :- (تکړه + وا + لَے ) [پ ، ص ، مذ ]و ــــ تکړه توب.

**تکـړے/ تګـړے** :- (ت+ ک + ړَے ) [ اَف : پ (قـاموس ) اِس ، مـذ ] ټوټه ، تکړه ، د جامو پيوند ـ

**تک سپين** :- (ت+ ک+ س + پي + ن ) [پ ، اِس ص ، مذ (مؤ ، وا : تکه سپينه ، ج: تکې سپينې)] ، بېخي سپين ، ډېر سپين ـ

**تـک سُور** :- (تـک+ سُو+ر) [پ ، اِص ، ص ،مذ ، وا ، ج: تـک سرهٔ ، (مؤ، وا : تکه سره ، ج: تکې سرې )]بېخي سُور ، ډېر سُور ـ

**تګ شین** :- (تګ+ شي+ ن ) [اپ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: تګ شنهٔ (مؤ ، وا: تکه شنه ، ج: تکي شنې)] ببخي شین ، ډېر شین.

**تکل** :- (ت+ ک + ل) [اپ ، اس ، مذ ] (۱) د سفر اراده (۲) اراده (۳) کوښښ (۴) مشق.

تکل د تلو کړه طلب د ملوکړه
خواجه بندي شوي د نفس په لُومه — بنګش

**کول** :- اص (۱) د سفراراده کول (۲) اراده کول (۳) کوښښ کول (۴) مشتق کول

یا صبا دے یا غرمه یا نمازپښین دے
نمازدیګر د ښکار تکل کړم ساعت لنډ دے — خوشحال خان

**تک لاسے** :- (ت+ ک + لا+ سے ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ج: تک لاسي (مؤ : تک لاسې)] چُست چالاک.

**تکلیف** :- (ت+ ک+ لي + ف) [ع، اس ، مذ ، وا ، ج: تکلیفُونه ] (۱) زیار ، خواري
(۲) مُصیبت ، کړان (۳) رنځ ، بیماري.

**تېرول** :- اص (۱) کړان او مصیبت تېرول (۲) رنځ بیماري تېرول.

**کول** :- اص ، زیار کول ، خواري کول.

**کېدل** :- اص ، زیار او خواري کېدل ، کړان کېدل.

**نه ویستل** :- اص ، مصیبت او کړان نه رابهر کېدل.

تل هوس ئې هر هوس باندې زیاتېږي
د اخلاص عالم ئې وویست له تکلیفه — مرزا انصاري

**تُکم** :- (تُ+ک +م ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تکمُونه ] تخم ، نسل.

**تُکمه** :- (تُ+ ک+ مَه ) [اپ (ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج : تکمې ]تنۍ ، بټن.

**تکمیل** :- (ت+ ک + مي + ل) [ع، اس ، مذ]پوره کول ، سرته رسول، مکمل کول، ختمول ، کمال ته رسول.

**ته رسېدل** :- اص ، مکمل کېدل ، پوره کېدل ، سرته رسېدل.

**تکُون** :- (ت+ کو+ ن) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : تکونُونه ]درې ګوټه ، درې ګوټیز ، درې پریزه ، مثلث.

**تکّه**:- (ت+ ک + که) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تکّې ]خورے، د غوښې ټکړه.

**تکه** :- (ت+ که) [اَف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ] (۱) هغه وز یا ګډ چې خصي شوے نهٔ وي (۲) یو قسم لوبه چې اُوږد لرګي سره وروکے لرګے ولي ، اَبسېړنډۍ ، ګُلي ډنډا.

**تکه** :- (ت+ که ) [اپ ، اس ، مؤ]تېکه ، نیام ، غلاف.

چې ئې تُوره په کار نهٔ حبطه ده
که ئې روغه وي د سپینو زرو تکه — خوشحال خان

**تکه توره** :- (ت+ که + تو+ ره) [اپ ، اس ، ص ، مؤ ، وا ، ج: تکې تورې ] ببخي توره ، ډېره توره.

کم دلیل له حقیقته خبر نهٔ دے
ا مجاز پرې باندې شپه شوه تکه توره — مرزا انصاري

**تکه تیارکه** :- (ت+ که + ت + یا + ر +که ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] جلتي ، تیزي.

**تکه تیارهٔ** :- (ت+ که + ت + یا + رَه ) [اپ ، اس ص ، مؤ ] ببخي تیارهٔ ، ډېره تیاره

**تکي** :- (ت+ک+ ئي) [اپ ، اس ، مؤ ] (۱) څهٔ خبره آورېدو ته غوږنُونه نبغ نیول
(۲) جفت ، جوړه.

**غوږونه تکي کول** :- اص ، د خبرو اورېدو په غرض غوږونه نېغ نیول.

**تکیا** :- (ت+ک + یا ) [فا ، اس ، مؤ ]تکیه ، ډاډ ، آسره.

**تکېدل** :- (ت+ کې + د +ل) [اَف : پ (قاموس) مص لا] ټُوکېدل شینکے د مزکې نه راوتل.

**تکیه** :- (ت+ک +یَه ) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تکیې ] (۱) د ملنګانو یا د ناستې پاستې ځاے (۲) باور ، یقین ، آسره ، ډاډ
(۳) بالښت ، مُتکه.

د دنیا تکیې ئې ولیدې په سترګو
نور به چاوته خوشحال لري تکیه

**پرکول** :- اص ، باور پر کول ، یقین باند کول.

**کول** :- اص (۱) باور کول ، یقین کول ، تکیه لرل ،(۲) بالښت ته ډډه لګول ، ټېک لګول ، شا لګول ، شا اړامول.

**کېدل** :- اص (۱) باور کېدل ، یقین کېدل (۲) ډډه اچول.

**لرل** :- اص ، و ـــــتکیه کول.

**تکیه کلام** :- (تکیه + کَ+ لا + م) [فا ، اس مر ، مذ ] هغه کلمه یا فقره چې د خبرو په مینځ کښې ئې سړے بې اختیاره بیا بیا وائي لکه: "څهٔ ورته وائي" "پوهٔ شوے" وغېره.

**تګ** :- (ت+ ګ) [اپ ، اس ، مذ ] چلن ، چلند ، یُون ، رفتار ، تلهٔ ، تلنه.

چې ئې عقل تصور نهٔ شي کولے
داسې تګ داسې رفتار ته مې زړهٔ کېږي — طاهر کلاچوي

**کول** :- اص ، رفتار کول ، یُون کول ، تلل.

**کېدل** :- اص ، رفتار کېدل ، یُون کېدل.

**تګا** :- (ت+ ګا) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ]طاقت ، حوصله ، توان ، همت.

**لرل** :- (اَف) اص ، طاقت لرل ، توان لرل ، همت لرل.

**وهل** :- (اَف) اص ، سابندي کېدل ، سا بندېدل.

**تګ او راتګ** :- (ت+ ګ+ او + را + تَ+ ګ ) [اپ ، اس ، مذ ] تلهٔ راتلهٔ.

**تګ تګ** :– (تګ + تَ + ګ) [اپ ، اس ، مکرر ] تلهٔ تلهٔ.

وخته راګورې په تګ تګ کښې ولې
زهٔ د بې نیازو مېړنو سره ځم — حمزه شنواري

**تګړے** :- (ت+ ګ+ ړے ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ج: تګړي ] تګړے ، تیګړے ، د زړو جامو ټوټه.

**اَړول** :- (اَف) اص ، ځرمن اَړول.

**ایستل** :- اص ، د جامې نه ټُکړه ایستل ، جامه شلول.

**تګړي تګړي کول** :- اص ، تکړې تګړې کول ، ټوټې ټوټې کول ، کنډلې جامه شلول.

**تګړے** :- (ت+ ګ +ړَے ) [اپ ، اس ، مذ ، وا ، ج: تګړي ] و- تګړے

**تګلے** :- (ت+ ګ + لے) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ] داسې ډاګه چې شینکے پکښې نهٔ وي ، مَیره ، داسې سخته مزکه چې شین بُوټي پکښې نهٔ کېږي

**تګ وتاز** :- (ت+ ګو+ تا+ ز ) [فا ، اس ، مذ ] تګ ، تلل.

ډکې سترګې په غبار لکه باد درومم
چې په طور د کورانو تګ و تاز کړم — کاظم خان شېدا

**تګ ودو** :- (ت+ ګ و+ دو ) [فا ، اس ، مذ ]منډے ترړے ، کوښښ.

موج غوندې لیدلې مې بقا وه تګ و دود کښې

څــکه د ژوندون پــه ســیند کــښې نـهٔ کوم آرام طاهر کلاچوي

**کول** :- منډې ترړې وهل ، کوښښ کول ، په تګ ودو کښې کېدل.

**کېدل** :- اِص ، کوښښ کېدل ، منډې ترړې وهل کېدل.

**په تګ ودو کښې کېدل** :- اِص . و ـــــــ تګ ودو کول.

**تګي** :- (ت+ګ+ئي) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ] تبۍ ، د کاڼي تخته.

**تګیر** :- (ت+ګي+ر) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ] د اُوبو د تقسیم بند.

**تل** :- (ت+ل) [پ ، ص] همېشه مُدام ، همېش.

تــل کــه دا وي د خــوبۍ طــمطراق ستا
نور دې لاس له ځانه پرې ينځي عشاق ستا خوشحال

**تَل** :- (ت+ل) [پ ، اِس ، مذ] (۱) ژوروالے (۲) توے (۳) تله ، وېخ ، بېخ (۴) هغه خیرې چې د اُوبو یا تېلو وغېره په وېخ کښې لاندې پاتې شي (۵) ضائع ، (۶) شګلوړه مېره ، د مزکې لويه پلنه ټکړه (۷) طرف ، خوا.

هــر چــې درې واړه ئــې پښته
کــه چا مړ کړو دے دې تل وي خوشحال خان

بتک ډک د خپلو وينو درسره وړه
يوه شپه به دې مقام په يوه تل شي سکندر خان ختک

د هغې چې ګرځېدنه ستا په تل وي
ســتا په تل به ئې آخر سرونه تل شي خوشحال خان

**کول** :- اِص ، تويول ، ضائع کول.

**کېدل** :- اِص ،توئيدل ، ضائع کېدل.

وريــښې تل شومه د اوښکې په رنګ
دُر د آشــنا د زړهٔ د تــل نــهٔ شــومه حمزه شنواري

**تَـلا** :- (ت+لا) [پ (ښتني) اِس ، مذ ]د کوټے د فرش د اُوچتوالي د پاره چې کُومه دُونکاچه جوړه شي.

**تلاتوب** :- (ت+لا+تو+ب) [پ ، اِس ، مذ] ناقلاري ، بې آرامي ، جوش ، هيجان.

که په تور د عاشقۍ بندي خانه شي
د عــاشــق لــه دلــه نهٔ ځي تلاتوب خوشحال

**کول** :- اِص ، ناقلاره کېدل ، بې آرامه کېدل.

په درسته ورځه چې تلاتوب کړي
د دنــيا چــارې په څهٔ آشوب کړي خوشحال

**تـلازه** :- (ت+لا+زه) [آف : پ (قـاموس) اِس ، مـؤ ، وا ، ج: تـلازې] تـرازه ، ترېشه.

**تــلاش** :- (ت+لا+ش) [فــا ، اِس ، مــذ ] (۱) طلــب ، غوښــتنه ، خــواهش (۲) لټون ، جستجو.

دا تلاش زما د مګر نهٔ دے نور څهٔ دے
چــې ګلګــونــې جامې آغندې جانانه حميد

د ګلــو پــه تلاش کښې تر اغزو اورسېدم
د خپلو په تلاش کښې تر پردو اورسېدم طاهر کلاچوي

**ش کــول** :- اِص (۱) طلـب کـول ، غوښـتل ،خـواهش لـرل (۲) لټـون کـول ، جستجو کول.

که بلبل مې د عصمت د ګل تلاش که
پــرئي وســوه سترې پاتې شه له ډونډه بېدل

**کېدل** :- اِص (۱) طلب کېدل ، خواهش کېدل (۲) جستجو کېدل.

**تلاشي** :- (ت+لا+شي) [پ ، اِس ، مؤ] لټون.

**اخستل** :- اِص ، تلاشي کول ، لټون کول.

**کول** :- اِص ، وـــــ تلاشي اخستل.

**کېدل** :- اِص ، لټون کېدل.

**تلافي** :- (ت+لا+في) [فا ، اِس مؤ] بدله ، عوض.

**تلانګه** :- (ت+لا+ن+ګهٔ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مـؤ ] پـه غـرهٔ کښې يا پـه ګُمبت کښې د آواز راستنېدنه.

**تلاؤ** :- (ت+لا+ؤ) [پ ، فا تـالاب ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: تلاوُونـه] تـالاؤ ، د اُوبـو ډنډ.

**تلاوه** :- (ت+لا+وَه) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: تلاوې] (۱) زورزياتے ، جور جفا ، ظلم (۲) تنبيه.

تــلاوه چــې د ســپــهر شنبه زمرۍ که
خود به ماته زما خوار خسته مرۍ که علي خان

لاتـــګار مـــې عـــلاوه تــلاوه دا کا
چې هجران مې دغه مه ګڼه لاتور دے علي خان

**کول** :- اِص (۱) زور زياتے کول ، ظلم کول (۲) تنبيه کول.

**تلاوے** :- (ت+لا+وے) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: تلاوي]
هغـه لوښے چې پکښـې د ګنې رَس جمـع کېږي ، او بيـا د هغـهٔ نـه نورو لوښو ته اچولے شي.

**تلب** :- (ت+ل+ب) [اَف : پ (قـاموس) ع: طلب ، اِس ،مذ ] تنخواه ، طلب ، معاوضه.

**تلبـر** :- (ت+ل+بَ+ر) [پ اِس ، مـذ ، وا ، ج : تلبرُونـه ] لـوے تـل ، لـوے ښنانک

ورته وايه توره کښېږده په صندوق کښې
هــر ســړے چــې مــړنے وي پــه تلبرو خوشحال خان

**تلبر** :- (ت+ل+بَ+ر) [پ (خ) اِس ، مذ ، وا ، ج: تلبران] تربور، د ترهٔ زوے

**تلبيس** :- (ت+ل+بي+س) [ع، اِس ، مـذ ] (۱) شـک ، وهـم ، مشـابهت (۲) دوکه ، ټګي ، فريب ، چل ول ، درغلي.

د ګمان له حجابونو چې فارغ شي
و بــاور وتــه چې اوځي له تلبيسه مرزا انصاري

**تـل پـاتے** :- (ت+ل+پا+تے) [پ ، اِس ص ، مـذ ، وا ، ج : تـل پـاتي مـؤ: تـل پاتې] همېشه پاتې کېدُونکے ، دائم ، دوامي.

**تل پچه** :- (ت+ل+پ+چَه) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا، ج: تل پچې] د دېوال ججه.

**تلپي غاښونه** :- (ت+ل+پي+غا+ښو+نه) [اَف : پ (قاموس) اِس ص ، مذ] سل کلني غاښونُه ، د چا چې سل کاله عُمر پوره شي نو وائي چې بيا ئې د نوي سره غاښُونه کېږي.

**تل ترتله** :- (تل+تَ+ر+ت+لَه) [پ ، ص] مُدام ، همېش ، تر ابده.

هــمت تــل تر تله ځوان ساته مُسلمه
په هر حال کښې نوے حال پيدا کوه حمزه شنواري

**تلتک** :- (ت+ل+تَ+ک) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تلتکان] برستن ، تولتک

**تَلخان** :- (ت+ل+خا+ن) [پ (ظفر) اِس ، مذ ] مُرمُرے ، د غنمو مرونډے ، د غنمو داني چې ورتې شي او د ګړې په شربت کښې غُنډان تر جوړ شي.

**تلخائي** :- (ت+ ل + خا +ئي) [پ ، اِس ، مؤ]تلخي ، تريخوالے ، تېزي

**تلخه** :- (ت+ ل + خه) [اَف :پ (قاموس) اِس ، مؤ] د مچې شړلو آواز۔

**تَلخي** :- (ت+ ل + خي) [فا ، اس ، مؤ ، وا ] (۱) تريخوالے ، تېزي
(۲) ناراضګي ، خفګان ، زړۀ بداوے۔

نېشکر له خپله اصله خوارۀ مومي
د تلخي اثر ئې زېړي خوارۀ مومي — مرزا انصاري

**تلخي ترشي** :- (تلخي + تُ+ ر + شِي) [فا ، اِس مر] تکليف ، کړاؤ ، مُصِيبت۔

په تلخي ترشي د ژوند چې نۀ کمېږي
هغې کېف هغه خمار ته مې زړۀ کېږي — طاهر کلاچوي

**تَلخيص** :- (ت+ ل + خي + ص) [ع، اِس ، مذ] خلاصه۔

**تَلغاک** :- (ت+ ل + غا + ک) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ] (۱) شور زوږ
(۲) باد باران۔

**تَلف** :- (ت+ ل +ف) [ع، اِس ، مذ] ضائع ، برباد ۔

د دنيا عمر دې واړه کړه تلف
په بدلو په سرود په چنګ و دف — خواجه محمد بنګش

**تَلفُظ** :- (ت+ ل + ف + فُ + ظ) [ع، اِس ، مذ] لفظ په خولۀ اداکونه ، لفظ په درستې طريقې د خړلې نه ايستنه ، د وينا طرز ۔

**تَلقين** :- (ت+ ل + قي + ن) [ع، اِس ، مذ] په ټينګه وينا ، نصيحت وعظ ۔

د مرزا حجاب ئې غوږ که
د کامل تلقين الماس دے

**تلکه** :- (ت+ لَ+که) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ] پړته ، کوړکی۔

**تلل** :- (ت+ ل + ل ) [پ ، مص مت ] تلنه ، تګ ، يُون ، حرکت کول ۔

سپرلي خبر کړئ چې په خيال دې اوسي
يار مې د باغ په لوري تلل غواړي — طاهر کلاچوي

**دډُنيا څخه تلل** :- اِص ، مړ کېدل ، پېښې آګرې ته کېدل ۔

**تلل** :- (ت+ ل+ ل) [پ ، مص مت ]وزن کول، تول کول ۔

**تللے** :- (ت+ ل + لَے ) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: تللي ، (مؤ : تللې)] لاړ ، تلے۔

**تللے** :- (ت+ ل + لَے ) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : تللي (مؤ : تللې)] وزن کړے ، تول کړے

**تلنځر** :- (ت+ ل + ن + د + زا ے ) [اَف : پ ( قاموس )اِس ، مذ]
لار ، د تګ لار ۔

**تلنګ** :- (ت+ لَ + ن + ګ ) [اَف : پ (قاموس ) حمص ]و ــــــــ تلنه ۔

**تلنګ** :- (ت+ ل+ ن + ګ) [پ (سو) اِس ] په سوات کښې يوه بانده چې د غرۀ په لمن کښې پرته ده ۔

**تلنګي** :- (ت+ لَ+ ن + ګي ) [اَف : پ (قاموس ) اِس ، مؤ ]د پېزار تلے۔

**پسې شلول** :- (اَف) اِص ، ډېر تلاش کول ، د څۀ څيز زيات لټون کول ۔

**شلېدل** :- (اَف) اِص ، د څۀ څيز په تلاش کښې زيات ستړے کيدل ، په څۀ شي پسې ذرې ذرې کېدل ۔

**تلنه** :- (ت+ ل+ نه) [پ ، حمص ] تګ ، يون ، تلنګ ، تلۀ ۔

يک تنها په لارې تلنه ده خوشحاله
په دا هسې لار څوک څۀ د لارې ملۀ کا

**تلنه** :- (ت+ ل+ نه ) [پ ، حمص ]وزن کونه ، تول کونه ، تلنګ۔

**تلوار** :- (ت+ ل+ وا + ر ) [پ ، اِس ، مذ] (۱) جلتي ، بيړه ، تُندي ، تلوارے ، تلېوار (۲) ناقلارې ، بې صبري ۔

دا ئې شاخ له ګل سره په تلوار پرې کړ
کـه د زړۀ سر مې تُر کو لړمون وکېښې — حميد

**کول** :- اِص (۱) بيړه کول ،جلتي کول ، تُندي کول (۲) ناقلاره کېدل، بې صبره کېدل ۔

د وصال په شپه تلوار کړې
دے تلوار دے له تلوار بنۀ — حمزه شنواري

**تلوار ګرندے** :- (تلوار+ ګ + رَ+ ن +دَے) [پ ، اِس ص ، مذ ، وا ج: تلوار ګرندي] (۱) تلواري ، بيړه کوُونکے ، تلوار ګندے (۲) بې صبره ، ناقلاره۔

يا مې عمر تلوار ګړندے دے يا تۀ ئې
چې همېش راڅخه ځې په لائې کامونه — حميد

**تلوار ګندے** :- (تلوار+ ګ + ن + دَے ) [پ، اِس ص ، مذ ، وا ، ج: تلوار ګندي ] و ــــــــ تلوار ګرندے ۔

**تَلواري** :- (ت+ ل+ وا + رِي) [پ ، اِس ص ، مذ] وــــتلوار ګرندے۔

**تل والے** :- (ت+ ل+ وا + لے) [پ ، اِس ص ، مذ ] همېش والے ، دوام۔

**تلو ترک** :- (ت+ لو+ تَ+ رَ+ک ) [اَف : پ (قاموس) اِس مذ] بې تابي ، تلوسه

**کول** :- (اَف) اِص ، بې تابه کېدل ، تلوسه کول ۔

**تلوسه** :- ( ت+ ل+ و + سَه) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج : تلوسې] هڅه ، مينه ، خواهش، آرزو ، تلو ترک ، بې تابي ۔

که يار سل ځله وعدې د وصال اوکه
زۀ له ډېرې تلوسې بې اعتقاد يمه — رحمٰن بابا

**تلول** :- (ت+ ل+ و + ل) [پ ، مص مت ] (۱) توئيول ، بَيول (۲) غورزول ، پرزول

**کول** :- (سو) اِص ، غورزونه ، پرزونه کول ، وهنه ټکونه کول۔

**تلول** :- (ت+ ل+ و + ل) [پ ، مص مت] په غوړو بائېلو کښې څۀ څيز سُور کول

**تلوله** :- (ت+ ل+ وَ + له ) [اَف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ] وارخطائي ، پرېشاني ۔

**تلولے** :- (ت+ ل+ و +لے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: تلولي (مؤ : تلولې)] په غوړ يا تېلو کښې سُور کړے ۔

**تَلولے** :- (ت+ ل+ و + لے) [اَف : پ (قاموس) مف ، مذ] وارخطا ، پرېشانه ۔

**تلولې کېدل** :- (اَف) اِص ، وارخطا کېدل ، پرېشانه کېدل ۔

**تلون** :– (ت+ لو+ ن ) [پ ، اِس ، مذ ]تلنه ، رفتار ، تګ ، تلۀ۔

**تلون** :- (ت+ لو+ ن) [پ ، اِس ، مذ ]وزن ، تول۔

**تلوُنکے** :- (ت+ لو+ ن + کے ) [پ ، اِس فاع ، مذ ، وا ، ج: تلوُنکي ، (مؤ : تلوُنکې)]تګ کوُونکے ، رفتار کوُونکے ، يُون کوُونکے ۔

**تلوُنکے** :- (ت+ لُو+ ن + کے ) [پ ، اِس فاع ، مذ ، وا ، ج: تلوُنکي (مؤ: تلوُونکې ) ] وزن کوُونکے ، تول کوُونکے ۔

**تلونګ** :- (ت+ ل+ وَ +ن +ګ ) [اَف : پ (قاموس) حمص] و ــــ تلونه۔

**تَلونګ** :- (ت+ ل+ وَ+ن +ګ) [اَف : پ (قاموس ) حمص ] و ـــــتلونه۔

**تلونه** :- (ت+ ل+ و + نه ) [پ ، حمص] تلونګ ، په غوړو يا تېلو کښې سُور کونه

**تَلونه** :- (ت+ ل+ و + نه ) [اَف : پ (قاموس) حمص] تلونگ ، تویَونه.

**تلوُنے** :- (ت+ لو+ نے ) [پ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: تلوُني (مؤ : تلوني)] (۱)تلوُنکے ، تګ کوُونکے (۲) فاني ، ناپائیدار .

**تلونے** :- (ت+ لو+ نے ) [پ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: تلوني (مؤ : تلوني)] تول کوُونکے ، وزن کوُونکے ، تول والا.

**تلوُونکے** :- (ت+ ل+ وو + ن + کے ) [پ ، اس فاع ، مذ ، وا ، ج: تلوُونکي ، (مؤ : تلوُونکې)] غوړو یا تېلو کښې سُور کوُونکے .

**تَلوُونکے** :- (ت+ ل+ وُو + ن +کے ) [پ ، اس فاع ، مذ ، وا ، ج: تَلوُونکي (مؤ : تلوُونکې) تویَوُونکے ]

**تلهٔ** :- (ت+ له) [پ ، حمص ]تلنه ، تګ ، تلل ، یُون .

فرش د نظر مې په ختمېدو دے
زهٔ یم ناتوان او بې مهره تلهٔ کا — حمزه شنواري

**تله** :- (ت+ له) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تلې]د څهٔ څیز د تول کولو آله ، چې یو طرف ته پکښې کاڼے او بل خوا هغه څیز اچولے شي ، ترکړی .

هر چې قیاس زما د عشق کاندي په عقل
کوه قاف د شېر شاهو په تله تولي — حمید

**تَله** :- (ت+ له) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تلې ]تلې ، د پښې لاندینۍ حصه په مزکې سره لګي .

تر هلال ئې صدقه شم تر بلال
په اخلاص یم زهٔ ددوي د تلې خاک — خوشحال خان

**پر تېرول** :- اص ، (۱) په څهٔ څیز پښهٔ راکښل (۲) د چا راز پټ ساتل (۳) څهٔ معامله په ښهٔ شان فیصله کول .

**تلهٔ وراتلهٔ** :- (ت+ له + وُ + را+ ت + له ) [پ ، اس ] تګ راتګ ، تلل راتلل ، مېل ملاپ .

**تلے** :- (ت+ لَے )[پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: تلي ] (۱) د لاس د پنجې تنۍ حصه ، ورغوے (۲) د پېزار لاندینۍ حصه (۳) د چرسو لوېه ټوټه چه د پېزار وتلې په شان وي (۴) د دارو تلے چې یو خوراک قدرې وي (۵) د کوټې یا دالان تلے (۶) غولے .

چې تلے پرې لګېدلے د خوبا وي
په عنبرو به هغه تراب ورنهٔ کړم — جناب کاکا خیل

**وهل** :- اص ،د دارو د سفوفو یؤ خوراک خوړل .

**تلے** :- (ت+ ل+ لے ) [پ (ب، خ) اس ، مذ ](۱)لنګے ، د کټ د پښو طرف (۲) یو قسم ستوري چې په قطار کښې د یو بل لاندې وي ، درېش .

**پېرونے** :- اص ، پروین او درېش ستوري ، هغه ستوري چې پېرونے د اُوو ستورو ځومبک وي او تلې په یؤ قطار کښې لاندې باندې ښکاري ، د دې ستورو نه خلق د وخت اندازه لګوي .

**تَلي پټ** :- (ت+ لي + پَ +ټ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ] د تلې یو طرف ، د تلې چاپېرے .

**تلېدل** :- (ت+ لي + د + ل) [پ ، مص لا] په غوړو یا تېلو کښې څهٔ څیز سُور کېدل

**تَلېدل** :- (ت+ لي + د + ل ) [پ ، مص لا] تویېدل .

**تلېدنګ** :- (ت+ لي + دَ + ن +ګ) [اَف : پ (قاموس) حمص ]او ـــــ تلېدنه .

**تَلېدنګ** :- (ت+ لي + دَ + ن + ګ ) [اَف : پ (قاموس) حمص ]او ـــــ تلېدنه .

**تلېدنه** :- (ت+ لي + د + نه ) [پ ، مص ] په غوړو یا تېلو کښې سُور کېدنه ، تلېدنګ .

**تلېدنه** :- (ت+ لي + د + نه ) [پ ، حمص ]تویېدنه ، تَلېدنګ .

**تلیسک** :- (ت+ لي + سَ + ک ) [اَف : پ (قاموس) اس مذ ] د انګورو ګُوچه .

**تلین** :- (ت+ لي + ن) [پ ، اس ، مذ ]تلینه ، د مړي کال ، هغه خېرات چې کال په کال مړي پسې کېږي .

**تلینهٔ** :- (ت+ لي + نه ) [پ ، اس ، مؤ ]او ـــــ تلین .

**تلوار** :- (ت+ لي + وا+ ر ) [پ ، اس ، مذ ]تلوار ، جلتي ، تندي ، بیړه .

**تلوار ګندے** :- (تلوار +ګ+ ن + د ے) [پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: تلوار ګندي ، (مؤ : تلوار ګندے) ] تلوار ګندے ، تلوار ګرندے ، بیړندے ، ناقلاره

**تم** :- (ت+ م) [پ ، اس ، مذ (مؤ ،وا : تمه ، ج: تمې)](۱) ایسار ، ولاړ (۲) ختم ، تمام ، بس (۳) مضبوط ، ډاډ (۴) د تورټکي سره چې روستو راشي نو توره تیارهٔ معني ورکوي لکه تورتم .

چه بها لري اعظمه هغه دُر ئې ښهٔ جمال دے
هغه دُر ئې ښهٔ جمال دے چهٔ خوبې ده باندې تمه — خوشحال خان
ما طاهر ته رقیب کله سم کتے شوے
که ئې ستا د لوري ملا چېرې تم نهٔ وے — طاهر کلاچوي

**کول** :- اص ، (۱) ایسارول (۲) بندول ، ختمول (۳) مضبوطول ، ډاډ ورکول ، ټینګول .

**کېدل** :- اص (۱) ایسارېدل (۲) ختمېدل (۳) مضبوطېدل ، ټینګېدل .

**تم** :- (ت+ م) [اَف : پ (قاموس )اس ، مذ ، وا ، ج: تمُونه ]تبر ، تبرګے

**تماچه**:- (ت+ ما+ چه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تماچې] تمانچه ، تپنچه ، پستول، تموچه .

**تماشه** :- (ت+ ما + شه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تماشې] (۱) تماشا ، ننداره ، لیدل کتل (۲) د خندا او ټوقو څیز .

عارفان د سر په سترګو ګوتې کښېږدي
د خپل زړهٔ په سترو ګوري تماشه کا — خوشحال خان

**جوړول** :- اص ،(۱) ننداره جوړول ، د تماشې انتظام کول (۲) ځان پورې خلق خندول .

**کول**:- اص ، ننداره کول ، د تماشې انتظام کول .

**تماش بین** :- (ت+ ما+ ش + بي + ن) [اف ، اس ، مذ ] تماشګیر ، ننداره کوُونکے ، کتوُنکے .

محبت کښې کله کله داسې حال په سړي راشي
هم په خپله تماش بین شي هم په خپله تماشه شي — طاهر کلاچوي

**تماشګیر** :- (ت+ ما + ش+ ګي + ر ) [اف ، اس ، مذ ] ـــــ تماش بین .

**تماغه** :- (ت+ ما + غه) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] (۱) د ښکرمنې یو قسم ټوپۍ چې غوږوُنه پکښې پټ وي (۲) د باز د سر ټوپۍ .

تمام ژمے ئې ساته په تاودهٔ ځاے کښې
تماغه ئې په بهار واخله له سره — خوشحال

**تماکو** :- (ت+ ما+ کو ) [پ ، اس ، مذ ] یو بوټے چې پاڼې ئې په چلم سګرټ کښې او دخولې او پوزې نسوارو په کار کښې استعمالېږي .

د خوبانو د خودئ په چلم کښې
د یوه کش تماکو شو زما روح — حمید

**څوک تماکو کول** :-اِص (۱) په چاد خپلې ډېرې غُصې او قهر اظهار کول ، په

چا دپکه کول (۲) تباه کول.

**تمام** :- (ت+ ما+ م) [ع، اِس، مذ (مؤ، وا، تمامه، ج: تمامې)] (۱) ټول، ګړو، غُنډ، کامل، تمامي (۲) ختم، پوره، سرته رسېدلے.

زۀ خواجه محمد تمام په ګناه ډوب يم
مګر ومې کارې خدا ے له دې دريابه — بنګښ

**تَمامت** :- (ت+ ما+مَ + ت) [پ، اِص، مذ ]تمامښت.

که ناپسند مې پسندومه نۀ قبلېږي
نـا اُمـيد شـوم د سـم له تمامته — بېدل

**تمامښـت** :- (ت+ مـا+ م+ ش +ت يـا م +خ +ت) [پ، اِس، مـذ ]خلاصـې، ختمېدنه، پوره کېدنه، تمامت.

**تمـامول** :- (ت+ مـا+ م+ و+ ل ) [پ، مـص، مـت] پـوره کـول، ختمـول، خلاصول، سر ته رسول.

**آن تمامول**:- (اَف) اص، کوښښ کول.

**تمامونه** :- (ت+ ما + م + و + نه ) [پ، حمص ]ختمونه، ختم کونه، پُوره کونه، سرته رَسونه.

**تمــامُوونکے** :- (ت+ مــا+ م +وُو+ ن + کــے) [پ، اس فــاع، مــذ وا، ج: تماموُونکي، مؤ: تما موُونکې)] ختموونکے، پوره کـوُونکے، سرته رسوُونکے، تمامُوونے.

**تَمامُوونے** :- (ت+ ما + م + وُو + نے) [پ، فاع، مذ، وا، ج: تماموُوني (مؤ: تماموُونې)] و ـــــ تماموُونکے.

**تَمامي** :- (ت+ ما+ مي) [پ، اِس]و ـــــ تمام.

**تمامېدل** :- (ت+ ما + مې + د + ل) [پ، مص لا ] ختمېدل، پُوره کېدل، سرته رسېدل.

**تمامېدنه** :- (ت+ ما + مې + د + نه) [پ، حمص] ختمېدنه، پُوره کېدنه، سرته رسېدنه، تمامېدۀ.

**تمامېدُونکے** :- (ت+ ما+ مې + دُو +ن + کے) [مؤ: تمامېدُونکې)] ختمېدُونکے، پُوره کېدُونکے، سرته رسېدُونکے.

**تمامېدۀ** :- (ت+ ما+ مې + دهٔ) [پ، حمص] و ـــــ تمامېدنه.

**تمانچه** :- (ت+ ما + ن + چَه) [پ، اِس، مؤ، وا، ج: تمانچې] (۱) و-تماچه (۲) د ګلالتو هغه لرګے چې لوښے پر پروت وي او د پاسه پر جوړولے شي.

**تمب** :- (ت+ م+ ب) [اَف :پ (قاموس) اِس، مذ ]تمبو، خېمه، کېږدۍ.

**تمبرے** :- (ت+ م + ب + رے) [اَف : پ (قاموس) اِس، مذ ] هغه تخته چې پېړے پر جوړولے شي.

**تَمبرې** :- (ت+ م + ب + رې) [پ، (ظفر) اِس، مؤ ] تمبګۍ، وړه تمبه.

**تمبکه** :- (ت+ م+ بَ+ که) [اَف : پ (قاموس) اِس، مؤ، وا، ج: تمبکې ] د ګبين يا شاتو د مچو وړے يا پياڅه.

**تَمبګــي** :- (ت+ م + ب + ګــي) [اَف : پ (قــاموس) اِس، مـؤ ] وړه تمبــه، تمبرې، تمبوګۍ.

**تَمبـل** :- (ت+ م + ب + ل) [پ، ع : طبـل، اِس، مـذ، وا، ج: تمبلُونـه ] دف، هغه غُنډ لرګے چې خرمن پر ختلې وي او د ساز په ډول غږولے شي.

**تَمبل باز** :- (تمبـل + بـا +ز) [پ، اِس ص، مـذ، وا، ج: تمبـل بـازان، (مؤ، وا: تمبل بازه، ج: تمبل بازے)] تمبلې، هغه سړے چې تمبل وهي.

**تَمبلي** :- (ت+ م + بَ + لي) [پ، اِس ص، مذ، وا، ج: تمليبان]و ـــــ تَمبل باز

**تَمبو** :- (ت+ م + بُو ) [پ، اِس، مذ، وا، ج: تمبوګان ] (۱) خېمه، کېږدۍ (۲) د مرغو نيولو لُومه.

**لګول** :- اِص، تمبو اُودرول کېږدۍ ولاړول، هرکله چې قافله يا فوځي دسته چېرته د شپې د پاره ايسارېږي نود سر پټولو د پاره تمبوان لګوي.

**نغښتل** :- اِص، د کوچ په وخت ولاړ تمبو راکوزول او ترل.

**تَمبوخـه** :- (ت+ م + بُـو + خـه) [اَف : پ (قـاموس) اِس، مـؤ ] ترېوخـه ،بدبويـه وږمه.

**تَمبـــوزګ** :- (ت+ م + بُـــو +زَ+ ک) [اَف : پ (قـــاموس) اِس، مـــذ وا، ج: تمبوزګـان] (۱) تربـوزک، کچُبـز، مـول، د دستار پـه لاندينۍ شـمله د پوزې راسې مخ او غوږونه پټول (۲) يو قسم ټوپک.

**تَمبوګۍ** :- (ت+ م + بُو + ګې) [پ (ب، خ) اِس، مؤ ] و ـــــ تمبګۍ.

**تَمبه** :- (ت+ م + به ) [پ، اِس، مؤ، وا، ج: تم بې ] (۱) د دروازې يو پټ، يو تاک (۲) د مکان ستن يا ستنه (۳) ټولے يا ډله (۴) سرکښ، د خبرې نه نۀ آوړېدونکے.

دم مې د عشق د ژوندون وۀ ځومره وۀ انتظار خوږ
ځير ځير هغـه زما د شپې تـمبوتـه دم په دم کتل — حمزه شنواري

د تـېـرې د مـنـډهانـېـو ښـه تـمبه وه
پـه دا کار کـښې د يوسف په اهتمام — خوشحال

**تَمبېدل** :- (ت+ م + بې + د+ ل) [پ، مص لا] (۱) ډغره خوړل، د يؤ ځيز د بل ځيز سره ټکره خوړل او بيرتـه راستنېدل (۲) د دېوال يا د غر نه کاڼے رالوېدل (۳) دوکه کېدل، خطا کېدل.

**تمبېدلے** :- (ت+ م + بې + د + لے ) [پ، مف، مذ، وا، ج: تمبېدلي (مؤ: تمبېدلې ] (۱) ډغره خوړلے (۲) د دېوال يا د غر نه کاڼے رالوېدل (۳) دوکه شوے، خطا شوے.

**تَمبېدنه** :- (ت+ م + بې + د + نه) [پ، حمص ] (۱) ډغره خوړنه (۲) د دېوال يا د غر نه کاڼے رالوېدنه (۳) دوکه کېدنه، خطا کېدنه.

**تَمبېـــدُونکے** :- (ت+ م + بـــې + دو + ن + کـــے) [پ، مـــف، مـــذ، وا، ج: تمبېدُونکي (مؤ: تمبېدُونکې)] (۱) ډغره خورُونکے (۲) د دېوال يا د غر نه کاڼے رالوېدُونکے (۳) دوکه کېدُونکے، خطا کېدُونکے.

**تَمبيزه/ تنبيزه** :- (ت+ م + بي + زه) [اَف : پ (قاموس) اِس، مؤ ] تمبېزې د پوزې د مينځ اَړوکے، د پوزې بند، تنبيزے.

**تمبيـــزے** :- (ت+ م + بـــي + زے) [اَف : پ (قـــاموس) اِس، مـــذ، وا، ج: تمبيزي ] و ــــ مَبيزه.

**تُمبيزے** :- (ت+ م + بي + زے) [پ (سو) اِس، ج ] مخ، څېره، بشره، ګُونه.

**اَلوزول /الوځول**:- (سو) اِص، بدبد په مخ وهل.

**تَمّت** :- (ت+ م + مَ + ت) [ع، اِس ] ختم، خاتمه، پوره شوے، تمام، سرته رسېدلے.

**تُمتـراخ** :- (ت+ م + تَ + را + خ) [پ، اِس، مذ ]تم تراق، طمطراق، شان شوکت لوئي.

**تَم تم** :- (ت+ م + تَ + م) [پ، اسم مکرر ] تمام، ختم، د خوبۍ کار پـه تا دے.

**تَمثيل** :- (ت+ م +ثـي + ل) [ع، اِس، مـذ ] (۱) نظيريـو شـان والـے، مثـال، مشابهت (۲) ډرامه.

**تَمچو** :- (ت+ م + چُو ) [اَف :پ (قاموس) اس، مذ ] د دروازې تمبۀ يا يو پټ

**تمخـــرے** :- (ت + م + رز+ رے) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مــذ ، وا ، ج: تمخري]تنخرے ، تنزرے۔

**تمدّن** :- (ت+ م + د + دُ + ن) [ع ، اِس ، مذ ] (۱) د يو ځـاے اوسېدو چـل ، د معاشرت طريقـه ، پـه ښـهر کښـې اوسـېدل (۲) يـو علم چې پکښـې د معاشرت آداب او دود دستور ښودلے شي شهريت۔

**تمسّک** :- (ت+ م + س + س + ک) [ع ، اِس ، مذ ](۱) نيوکه ، گرفت (۲) هغه لوظ نامه چې پوره ورېے ئې د سند پـه ډول ليکي چې پکښې د روپو د واپس کولو طريقه او ميعاد ليک وي۔

**تَمغه** :- (ت+ م + غه) [فا ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: تمغے]د عـزّت نخښـه يـا نشـان ، پـه ځـۀ ښۀ او لوے کار د انعام پـه ډول د سپينو يا سرو زرو تغمه۔

**تمکـه** :- (ت+ م + کـه) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـؤ ] يـو ځنگلـي بـُوټے چـې زهر لري۔

**تَمليک** :- (ت+ م + لي + ک) [ع ، اِس ، مـذ ] د ملکيت حق ورکول ، څوک د څۀ څيز مالک يا خاوند کول۔

**تَمليک نامه** :- (تمليک + نا + مه) [فاتر ، اِس ، مؤ ]هغـه ليـک چې څوک د څۀ جائيداد مالک جوړوي۔

**تمن** :- (ت+ م + ن) [پ (ب) خ) اِس ، مذ ]تمنۀ ، داشخار بُوټي د پانړو نه جوړه هغه پلنه چکۍ چې په ځينو علاقو کښې د صابون په ځاے استعمالېږي

**تُمن** :- (ت+ م+ ن) [پ ،اِس ، مذ ](۱) ټولے ، جماعت ، عزيزولي (۲) د سلو سوَرو يوه دسته ، رساله ، پلټن۔

**تمنّا** :- (ت+ م + ن + نا) [ع ، اِس ، مؤ ] خواهش ، شوق ، آرزو۔

هغه زړونه چې ستا غم ته هوسېږي
ددوي دغــه تــمـنـا پـه نــظر مه شه — طاهر کلاچوي

**تُمن دار** :- (ت+ م + ن + دا + ر) [فا ، اِس ص ، مذ ، وا ، ج: تمن داران ] (۱) رسالدار ، د فـوځي دستې افسـر (۲) يـو ټـولي يـا جماعـت مشـر ، د خاندان مشر۔

**تمنۀ** :- (ت+ م+ نه) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ] و ــــــــ تمن۔

**تَموچه** :- (ت+ مو+ چه) [پ ، (ب ، خ) اِس ، مؤ ، وا ، ج : تموچې] و ـ تماچه

**تموس** :- (ت+ مو+ س) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ](۱) خاربنت ، (۲) زياته گرمي۔

**تَمول** :- (ت+ م + و +ل) [پ ،مص مت ]تم کول ، اتِالول ، ايسارول ، اُودرول۔

**تمــوّل** :- (ت+ مــو+ و + ل) [ع ، اِس ، مــذ ] شــته مــن تــوب ، مالــداري ، دولتمندي

**تَمونه** :- (ت+ م + و+ نه) [پ ، حمص ] تم کونه ، اتِالونه ، ايسارونه ، اودرونه

**تَموُونکے** :- (ت+ م+ وُو + ن+ کے) [پ ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج: تمـوُونکي (مـؤ : تموُونکې)] تم کوُونکے ، اَتِالوُونکے ، ايساروُنکے ، اُودروُونکے۔

**تَمه** :- (ت + مه ) [پ ، ع : طمع ، اِس ، مؤ ] لالچ ، توقع ، آسره ، اُمېد لکه : "د تمه ځاے خالي وي"

**کول** :- اِص ، اُميد کول ، آسره کول ، لالچ کول ، توقع لرل ، تمه لرل۔

**لرل** :- اِص ، و ـــــــــــ تمه کول۔

**تَمهيد** :- (ت+ م + هي + د ) [ع ، اِس ، مذ ]سريزه ، شروع ، عنوان ، ديباچه۔

**تمېـدل** :- (ت+ مـې+ د+ ل) [پ ، مـص لا]تـم کېـدل ، اَتِالېـدل ايسـارېدل ، اُودرېدل

**تَمېدنګ** :- (ت+ مې + دَ+ ن + گ) [اَف : پ (قاموس) حمص ]و ــــ تَمېدنه

**تَمېدنه** :- (ت+ مې+ د+ نه) [پ ، حمص ]تم کېدنه ، اَتِالېدنه ، ايسارېدنه ، اُودرېدنه ، تمېدۀ۔

**تَمېدُونکے** :- (ت+ مې+ دُو + ن+ کے) [پ ، مف ، مـذ ، وا ، ج: تمېـدُونکي ، (مـؤ : تمېـدُونکې)]تـم کېـدُونکے ، اَتِالېـدُونکے ، ايسـارېدُونکے ، اُودرېدونکے۔

**تَمېدۀ** :- (ت+ مے + ده) [پ ، حمص ]و ـــــــ تَمېدنه۔

**تَميز** :- (ت+ مي+ ز) [ع ، اِس ، مذ ](۱) جدا کول (۲) پېژندگلي (۳) فرق (۴) عقل ، پوهه ، شعور (۵) ادب (۶) قاعده ، طريقه (۷) جاج۔

چې همت د سړي څو قدر ئې هومره
د تــمـيز پـه تـلـه هر سړے تالۀ شي — خوشحال

**تَميزدار** :- (تميز+ دا+ ر) [فا ، اِس ، مذ (مؤ ، وا ، تميزداره ، ج: تميزداري)] هوښيار ، پوهه ، لائق ، تميز لرُونکے۔

**تن** :- (ت+ ن) [پ ، اِس ، مذ ، وا ](۱) بدن ، وجود ، جسم ، جُثه ، کالبِ ، (2) کس ، بنده ، نفر ، سَر ، سړے۔

پــه بــدخويه اور له خپله تنه لگي
خپله جاله کړي په ځان تنور ققنس — حميد

**اَزار ېدل** :- اِص ، کړېدل ، زورېدل ، تکليف موندل

**تن اېښودل** :- اِص ، غاړه کښېښول ، راضي کېدل۔

**پاکېدل** :- اِص ، وجود صفا کېدل ، پاکېدل۔

هر چې تن ئې پاکيزه شي
خـاطـر ئــې تضيقت کا — مرزا انصاري

**پـر اېښـودل** :- اِص (۱) پـه ځـان وراچول (۲) د ځـا د پـاره د خپـل تـن قربـاني ورکول۔

**په تن** :- اِص ، کس په کس ، سړي په سړي ، په هر يو۔

هر سړے د خپلې چارې پسنده دے
تــن پـه تن د حاکم حکم پرې ويشتلے — مرزا انصاري

**په تنهائي کېدل** :- اِص ، يکي يواځې کېدل ، بې ملگري کېدل۔

**تنها**:- اِص يکي يواځې ، ببځي يواځې۔

تن تنها چې په تلاش کښې د ستا گرځي
دغــه ســتورے د صـبا پـــه نظر مه شه — طاهر کلاچوي

**ورکول** :- اِص (۱) ځان ورکول (۲) حق ورکول ، حصه ورکول (۳) قبلول ، حکم منل۔

**وېلي کېدل** :- اِص ، مانده کېدل ، نرے کېدل ، وچېدل۔

**نۀ ورکول** :- اِص (۱) حق نۀ ورکول (۲) نۀ قبلول (۳) د ځناور بې آرامـه کېـدل د ځناور منډې تر پې وهل (۴) نيونه نۀ ورکول۔

**يشېدل** :- اِص ، وجود يشېدل ، د غصّې نه ډېدل ، دغصّې په اور سول۔

تــل مــې تــن لـکه د پــــنډ هسې يشېږي
پروت پـه تبه کښې بـشر دے ستا له درده — حميد

**په تن کښې وينه وچېدل** :- اِص ، (۱) په وجود کښې وينه وچېدل (۲) ډېر کړېدل (۳) زيات زهيرېدل۔

**په تن لگېدل** :- اِص (۱) په وجود لگېدل ، د وجود جُزو کېدل ، هضمېدل (۲) فکر ، خيال يا غم کېدل ، په زړۀ څۀ اثر کېدل۔

**تَنا** :- (ت+ نا) [پ ، اِس ، مؤ ]تنِا ، د وريځو غرا ، تالنده ، تنو۔

نـن و مـاوتـه د مینې بلا راغله
لکه رعدد د آسمان په تنا راغله اخون گدا

**تناب**:-(ت+ نا + ب) [پ ، ع : طناب ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تنابُونه] تناؤ، رسۍ ، پړے

د دوستۍ ترتناب لاندې
کوهے کنې چپ او راس حمید

**تنـابوره** :- (ت+ نـا + بـو + ره) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مؤ ] پـه شـگه يـا ختـه کښې جوړ کړے سُوړے چې پُوکے ورکوي۔

**تناره ډوډۍ** :- (ت+ نا ره + ډو + ډي) اپ ، اِس ص ، مؤ ] د تنور ډوډۍ۔

**تَنازعـه** :-(ت+ نـا + ز + عَـه) [ع ، اِس ، مـؤ، وا، ج: تنـازعې] جګړه ، جنـگ جګړه ، خبرې ، اَړونه ، فساد ۔

**کول** :- اص ، په خپلو کښې جنگ جګړه کول ، خبرې اَړول ، فساد کول۔

**کېدل** :- اِص ، په خپلو کښې جنگ جګړه کېدل ، فساد کېدل۔

**تَن اَسان** :- (تن + اَ + سا + ن) اپ تر ،اِس ص ، مذ (مؤ : وا: تن اَسانه ، ج: تن اَساني) اپه خپـل ځان اَسانتیا خوښوُونکے ، ناراست ، لَټ ، د کړاؤ نه ځان بچ کوُونکے ، آرام طلبه۔

**تَن اَساني** :- (تن + اَ + سا + ني) اپ ، اِس ، مؤ ]ناراستي ، لټ توب ، پـه ځان کړاؤ يا سختي نۀ خوښونه آرام طلبي۔

**تناسـب** :- (ت+ نـا + سُ + ب) [ع، اِس ، مـذ ]نسـبت ، د دوؤ څیزونـو پـه خپلو کښې مناسبت۔

**تَناسخ** :- (ت+ نا+ سُ + خ) [ع ، اِس ، مذ ]د يو شکل نه په بل شکل بدلېدل ، د روح د يو کالبوت نه وتل او بل کالبوت ته ننوتل ، د هندوانو د عقيدې په مطابق بيا بيا په بدل بدل شکل کښې پيدا کېدل ، نوے جنم اخستل

**تَناسُـل**:- (ت+ نـا+ سُ+ ل) [ع ، اِس ، مـذ ] نسـل پيـدا کـول يـا زيـاتول ، اولاد پيدا کول۔

**تناؤ** :- (ت+ نا+ ؤ) [پ، فا: طناب ،اِس ، مذ ، وا،ج: تناوُونه ]تناب،پړے.

تـناوُو نـه ئـې د زلـفو دي دا زړۀ مې
لکه مالک د باغي لاندې تر تخريب شۀ خوشحال خان

**د مزکې تناوُونه لنډېدل** :-مح ، د تگ راتگ د آسانو په وجه لرې فاصله کمېدل

**تنـاؤ کښ** :- (تنـاؤ+ کَ+ ش) [اَف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ] غنـې ، گنـې ، جولاگۍ ۔

**تناول** :- (ت+ نا+ وَ+ ل) اپ :اِس ، مذ ، وا ، ج: تناوليان (مؤ: تناولۍ )]

پـه هـزاره ضـلع کښـې يـوه علاقـه چـې د پښـتنو تنـاولي قبيلـه پکښـې اوسېږي۔

**تناوِلے** :- (ت+ نا+ و+ لے) اپ ، اِس ،مذ (مؤ : تناولۍ)] (۱)د تناول خپـل سره تعلق لرُونکے ،(۲) د تناول اوسېدُونکے۔

**تناوے** :- (ت+ نا+ وَے) [اَف پ (قاموس) اِس ، مذ ]د تمبو پړے يا رسۍ۔

**تنبل** :- (ت+ ن + ب+ ل) [پ ، فا: طبل ، اِس ، مذ ، وا ج : تنبلُونه ]و ــــ تمبل ۔

**تَنبُوره** :- (ت+ ن + بُو+ رَه) [فا ، اِس ، مؤ ]يـو قسـم سـاز يـا باجـه چـې د لـوے پېټه کدو وچ پوستکي د پاسه ئې يو اُوږد لـوگے لگولے وي او پکښـې ئـې ژۍ او د سيمو تارُونه لگولي وي۔

**تَنبول** :- (ت+ ن+ بُو+ ل) [ه ، اِس ، مذ ] پان ۔

تـورې سترگې په کجلو
پـه تنبولو شونډې سرينه خوشحال

**تنبيزے** :- (ت+ ن + بي+ زَے ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ،ج: تنبېزي ] و ـــــــ تمبېزه۔

**تنبيه** :- (ت+ ن + بِي + ه ) [ع، اِس ، مؤ ](۱) ملامته ، ملامتيا ، رټنه ، ډپکه (۲) خبردارے نصيحت۔

**تَنتنا** :- (ت+ ن+ تَ+ نا ) [پ (ظفر) اِس ، مؤ ] دبدبه ، آوازه۔

**تَنترِنے** :- (ت+ ن+ تَ + رِے ) [اَف: پ (قاموس) اِس ، مذ (مؤ : تنترۍ)] ترټرے ، هغه څوک چې ژبه ئې ننبلي۔

**تنخـــرے** :- (ت+ ن + د+ ز + رے) [پ ، اِس ، مـــذ ، وا، ج: تنخـــري او ـــ تمخرے۔

**تنخچـے** :- (ت+ ن + خَ + چـے) [پ (ظفـر) اِس ، مـؤ ، ج: وا : تنخچـه (غیـر مستعمل ] د بُوټي نرۍ نرۍ نازکې پاڼې او تارُونه۔

**تنخواه** :- (ت+ ن+ خا+ ه) [فا ، اِس ، مؤ ، وا، ج: تنخواگانې ]
د مياشتې د کار عوضانه يا رقم ، طلب۔

**تَنخواه دار** :- (تنخواه + دا+ ر) [فا ، اِس ص ، مذ ] تنخواه اَخستونکے ، ملازم ، نوکر

**تَنـــد** :- (ت+ ن+ د ) [پ ، اِس ] مـــذ (مـــؤ ، وا : تنـــده ، ج: تنـــدے) تـــنکے ، نازک ، تازه۔

**تنده ځواني** :- اص ، د ځوانۍ سر ، اوّله ځواني۔

**تُند** :- (ت+ ن+ د) [پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا: تُنده ، ج: تُندے] (۱) تېز ، جلت ، چُست ، چابک (۲) غُصه ناک ، قهرجن ، تريخ ، کلک ۔

**تُند کېدل**:- اص (۱)تېز تېز گرځېدل ، چُستي ښکاره کول (۲) پـه څۀ خبره کښې مُدعي کېدل۔

**سَرې** :-اص (۱) غُصه ناک بنيادم ، قهرجن (۲) تېز سړے ، چُست ، جلت۔

**تُندې خبرې** :- اِص ، تېزې خبرې ، د سوخت خبرې ، د غُصې خبرې۔

**تُندخويه** :- (تُند+ خُو+ يَه) [پ ، اِس ص ، مذ ، وا، ج: تُند خويان]
غُصه ناک ، قهرجن ، تريخ۔

د سيلاب موج په بند د گرداب کېوزي
پـه نـرمۍ کـوم تسخير د تُند خويانو کاظم خان شيدا

**تَندر** :- (ت+ ن+ د+ ر) [پ ، اِس ، مذ ، وا، ج: تَندرُونه ] آسماني بجلي۔

تـندرونه خوشحالېږي خدائے دې خبر کړي
بيا د چا جاله جوړېږي خدائے دې خبر کړي طاهر کلاچوي

**تندر پرېوتل**:- اص ، تندر نازلېدل ، آسماني بجلي پرېوتل۔

**نازلېدل**:- اِص و ـــــــ تندر پرېوتل۔

**پرې باسل** :- اص (۱) په مصيبت اختـه کول ، بـلا ورپسـې کول (۲) اهميت نۀ ورکول ، څۀ څيز پسې پام نۀ کول۔

**نيول** :- اِص ، د سپوږمۍ يا نمر رڼا کمېدل۔

**وهل** :- اص (۱) په چا تندر راپرېوتل (۲) بلا وهل ، په مصيبت کښې گېرېدل۔

**په چا تندر پرېوتـل** :- اص ، پـه چا ناڅاپي آفت پرېوتـل ، څوک دنيـا مـه پـه څۀ مصيبت کښې گېرېدل۔

**تَندرست** :- ( ت+ ن+ د+ رُ+ س+ ت ) [ فا ، اِس ص ، مذ ، (مؤ : وا: تندرسته ، ج: تندرستې ) ]صحت‌مند ، روغ جوړ ، صحيح سالم ، ښۀ تکړه ، روغ رمټ ۔

د دردمـــنو حال درد مـــن پـــه قـياس معلوم کا
کـه ئـې وائـې ښـکاره نـۀ وي په تندرستو خوشحال خان

**تَندرستي** :- (ت+ ن+ د+ رُ+ س+ تي) [افا ، اِس ، مؤ ]د تن د رستوالے ، روغتيا ، جوړوالے ، صحت ، سلامتيا ۔

**تَندرکے** :- (ت+ ن+ د+ ر+ کے) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: تندرکي ] نيم سرے ، د نيم سر درد ۔

**تـَندره** :- (ت+ ن+ د+ ره) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ] (۱) د نمر يا سپوږمۍ تندر نيول (۲) د آسمان آفت ، بلا ، مصيبت ۔

د بنۀ مخ تر سپري څۀ دي
لـکـه تـنـدر د هـلال خوشحال خان

**لوېدل** :- (اَف) ص، آسماني ، آفت نازلېدل ، بلا يا مصيبت راتلل،تندر پرېوتل

**تندرې نيول** :- (اَف) اِص ، نمر يا سپوږمۍ تندر نيول ۔

**تـندرې وهـل** :- (اَف) اِص ، بـلا وهـل ، مصيبت کښې گرفتـاره کېـدل، آفت نازلېدل، په غم گېرېدل ۔

**تُندره** :- (ت+ ن+ دُ+ رَه) [اَف : پ (قاموس) اِس + مؤ] تندوره ، پـه غـرۀ کښې هغه خوبۀ چې اُوبۀ تر رالوېږي ۔

**تَندرے** :- (ت+ ن+ دَ+ رَے) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ] دوُنې نرم پوټ چې کال په کال د زاړۀ پوټ ځاے نيسي ۔

**تـِندک** :- (ت+ ن+ د+ ک) [اپ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: تندکُونـه ] ټکره ، تينـدک ، بُدري ۔

**تندگونه خوړل** :- اِص ، ټکرې خوړل ، تيندک خوړل ۔

**تُنـدک** :- (تُ+ ن+ دَ+ ک) [اَف : پ (قـاموس) اس ، مـذ (مـؤ ، وا: تُندکـه ج: تُندکے )] خُشکتيے ، ترله وتلے ، د سوخت نه لېونے کېدُونکے ۔

**تَندل** :- (ت+ ن+ د+ ل) [اَف : پ (قـاموس) ، مص مت ] تنډل ، مرمت کـول ، جوړول ، رغول ۔

**تُندوالے**:- (ت+ ن+ د+ وا +لے) [اپ ، اِس ، مذ ] (۱) تېزي ، چابکي ، (۲) غصـه ، قهر ، سوخت والے ۔

**تَندوبـه** :- (ت+ ن+ دو+ بـه) [اپ ، اِس ص ، مـؤ ، وا ، ج: تنـدولې] آوي ، آبـي ، تانده

**تُندوبـه** :- (تُ+ن+ دو+ بـه) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مؤ : وا ، ج: تُنـدوبې ]د اُوبـو فواره ۔

**تَـندور** :- (ت+ ن+ دُو+ ر) [اپ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: تندورُونـه ] تنـورچې ډوډۍ پکښې پخوي ، بټۍ ۔

**تِـندور** :- (ت+ ن+ دو+ ر) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مؤ ] تينـداره ،د تـرۀ بنـځه ، تنديار ۔

**تندوړے** :- (ت+ ن+ دو+ ړَے) [اپ (ظفر) اس ، مذ ]د پوزې آړوکے ۔

**تُندول** :- (ت+ ن+ د+ و + ل ) [اپ ، مص مت ]تېزول ، جلتول ، چُستول ۔

**تَندوله** :- (ت+ ن+ دو+ لَه) [اپ ، (ب ، خ) اِس ، مؤ ]يو قسم ساگ ، تندولے ۔

**تَندولے** :- (ت+ ن+ دو+ لے) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ] و ـــ تندوله ۔

**تُندونه** :- (ت+ ن+ د+ و+ نه) [اپ ، حمص ]تېزونه ، جلتونه ۔

**تُندوونکے** :- (ت+ ن+ د+وو +ن +کے) [اپ اِس فـاع ، ن ، وا ، ج: تُندوُونکي (مؤ : تُندوُونکې)]تېزوُونکے ، جلتوُونکے ۔

**تَندوے** :- (ت+ ن+ د+ وَے) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: تندوي ] د سينې کرپندے اَړوکے ، سرپُښتے ۔

**تنده** :- (ت+ ن+ ده) [اپ ، اِس ، مؤ ]د اُوبو خواهش ۔

پـه آواز د اوبـو تـنده نۀ ماتېږي
کله سود شي د ديدن په سلامونه حميد

**ماتول** :- اِص (۱) په اوبو ځان مړول (۲) اَرمان پُوره کول ، تسلّه کول ۔

چې مې تنده د جنون ماتوے نۀ شي
زما څۀ که ستا د حسن سيند بهېږي طاهر کلاچوي

**ماتېدل** :- اِص (۱) د اُوبـو خواهش پـوره کېـدل ، تنـده مړېـدل (۲) ارمـان پـوره کېدل ، تسلّه کېدل ۔

تنده د ديدن دې په ديدن هم ماته نۀ شوه
څـو که هر يو کسې د حمزه اوبۀ اوبۀ شو

**مړېدل** :- اِص ، و ـــ تنده ماتېدل ۔

**تنده** :- (ت+ ن+ ده) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـؤ ] لاټې ، يـو قسـم بُـوټے چې اُوښ ئې خوري ۔

**تَنـدے**:- (ت+ ن+ دَے) [اپ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: تنـدي ] (۱) تِنـدہ ، وچ ولـے (۲) د حېوان تازه پېدا شوے بچے (۳) تازه ټوکېدلے فصل ۔

**تريـنگول** :- (ب، خ) اِص ، تنـدے تريـوول ، تنـدے تريـو نيـول ، تنـدے گونځې کول ، د ناراضگۍ اظهار کول، په زړۀ کښې د چا نه کرکه او نفرت کـول ځان سوختول ، تندے غوټه کول ، تندے گونځې گونځې نيـول ، تنـدے غوټې غوټې کول ۔

**ترينه ټکول** :- اِص ، گله کول ، خفگان ظاهرول ۔

**تريونيول** :- اِص ، و ـــــ تندے ترينگول ۔

**تريوول** :- اِص ، و ــــــ تندے ترينگول ۔

**ټکول** :- اِص ، د غم اظهار کول ، تندے وهل ۔

**داغل** :- اِص ، تندې ته داغ ورکول ، وچ ولـے داغـل ، په خپله بده برخه يا خـراب قِسمت افسوس کول ۔

**سره تلل** :- (اَف) اِص ، تندے غوړېدل ، خوشحالېدل ۔

**سُولول** :- اِص ، تندے په مزکه راکښل ، زيات عبادت کول ۔

**غوټه کول** :- اِص ، و ــــــتندے ترينگول ۔

**غوټې غوټې کول** :- اِص و ــــ تندے ترينگول ۔

**غوړېدل** :- اِص ۔ و ــــ تندے سره تلل ۔

**گونځے کول**:- اِص و ــــ تندے ترينگول ۔

تندے ولې گونځې گونځې راته نيسې
کـه تـۀ وائې يـاره اوبـه گنډم سترگې طاهر کلاچوي

**وهل** :- اِص ، و-تَندے ټکول ۔

**په تندي کښې نوشته کېدل** :- اِص (۱) پـه برخـه رسېدل ، قسمت کښـې ليکلے کېدل (۲) د ازل ليک په برخه کېدل ۔

**د تندي ليک**:- اِص (۱) د قسمت برخه (۲) ازلي برخه ، تقدير ۔

**د تندي ليک ورانول** :- اِص (۱) قسمت بدلول (۲) تقدير بدلول ۔

**سـر تـنـدې نـۀ لگېدل** :- اِص ، آرام نـۀ مونـدل ، ډېـر زيـات بـې آرامـه کېـدل ، پرېشانه کېدل ۔

**سـر تـنـدې وهـل** :- اِص (۱) تنـدے ټکـول ، پـه څـۀ خبـره خفگـان ظـاهرول (۲) کوښښ کول ۔

**تندے** :- (ت+ ن+ دَے) [اَف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]غونډ ، گرډے

**تُندي** :- (ت+ ن+ دي) [افا ، اِس ، مؤ ]جلتي ، تېزي ، بيړه ، تلوار ۔

چېرته شېخ چېرته تندي د عشق حمید
چېرته جـنـګ چـېـرته بې دله ارتینه

**په مخه اخستل** :- اص ،جلتي کول ، بیړه کول ، ځان ګړندے ګړندے کول۔
**کول** :- اص ، جلتي کول ، تلوار کول ، بیړه کول۔
**تَندیار** :- (ت+ ن + د+ یا + ر) [پ (پ ، خ) اس ، مؤ ] و ـــــ تندور۔
**تند یاره** :- (ت+ ن + د+ یا + رَه ) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تندیارې] تینداره۔
**تُندېدل** :-(ت+ ن+ دې + د+ ل ) [پ، مص لا] تېزېدل ، جلتېدل، په تلوار کېدل
**تُندېدنه** :- (ت+ ن+ دې + د + نه ) [پ ، حمص ] تېزېدنه ، بیړه کونه ، تلوار کونه ، تُندېدۀ۔
**تُندېـــدُونکے** :- (ت+ ن+ دے+ دُو + ن + کـے ) [پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: تُندېدُونکي (مؤ : تُندېدُونکې)] تېزېدُونکے ، بیړه کوُونکے ، جلتي کوُونکے
**تُندېدۀ** :- (ت+ ن + دې + دۀ ) [پ ، حمص ] و ــــــ تُندېدنه۔
**تَنړل** :- (ت+ ن + ړ+ ل ) [اَف : پ (قاموس) مص مت ] و ـــــ تَندل
**تَنړلے** :- (ت+ ن + ړ+ لے ) [اَف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: تړنلي ]
روغ کړے ، جوړ کړے ، تعمیر کړے۔
**تَنړنـه** :- (ت+ ن + ړ + نـه ) [اَف :پ (قـاموس) ، حمـص ] رغونـه ، جوړَونـه ، تعمیر کونه۔
**تَنـړو** :- (ت+ ن+ ړُو ) [اَف : پ (قـاموس) ص ]خېټـو ،ګېـډور، ډېـر خـوراک کوُونکے ، خوراکي ، زیات خور۔
**تَنړوس** :- (ت+ ن + ړُو +س ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ] یو قسم واښۀ چې د سپرلي په موسم کښې راټوکېږي۔
**تَنـړونکے** :- (ت+ ن+ ړُو + ن + کے ) [اَف : پ (قـاموس) اس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: تنړُونکي (مؤ : تنړوُونکې)]رغوونُکے ، جوړوُونکے ، تعمیر کوُونکے۔
**تَـڼ** :- (ت+ ن + ړ ) [اَف : پ (قـاموس) اس صـو ، مـذ ] د زمـري ي اپرانـګ د غرا آواز ، ډرق۔
**تڼ** :- (ت+ ن + ړ ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ] شعر ، غزل۔
**تڼا** :- (ت+ ن + ړا) [پ ، اس ، مؤ ]تنا ، د آسمان ګړز ګړوز۔
**تڼاکه** :- (ت+ ن+ ړا+ که) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : تڼاکې ]پُولۍ۔
دلته د بنکلیو وے کېږدۍ دا چې تڼاکې دي اوس
د زړونــو ســرائے تــه هسې رنـګه قـافلـې راځي حمزه شنواري
**چاؤدل** :- اص (۱) پُولۍ چاؤدل ، تڼاکه ماتېدل (۲) دمه کول ، آرام کول (۳) مقصد حاصلېدل ، انتظار ختمېدل۔
**کول**:- اص (۱) پولۍ کول ،(۲) ډېر کړول۔
**کېدل** :- اص ، پُولۍ کېدل ، کړېدل۔
د غمونو په دریاب کښې لب بسته لکه صدف یم
کــه مې ستا له ډېره جوره شۀ تڼاکه لړمون هسې کامګار خټک
**تڼاکې لړمُون** :- اص ، پُولې پُولۍ لړمون ، سوځېدلے ګوګل ، غمجن تټر۔
ډېـرې مـودې نه مې تڼاکې لړمون
ستا د بـنـو تـېرۀ سـرونه غوارې طاهر کلاچوي
**تڼاکې ماتول** :- اص ، (۱) پُولۍ ماتول ، د تڼاکونه اُوبۀ ویستـل (۲) تکلیف لـرې کول۔
چې د خوږین لړرومن تڼاکې مې کړې ماتې
اذن ورکــه د بــنو تـېـرۀ پـېکان تــه طاهر کلاچوي

**زړۀ تڼاکې تڼاکې کېدل** :- اص زړۀ پُولۍ پُولۍ کېدل ، زوربدل ، تکلیف مونـدل ، کړېدل ، ډېر غمجن کېدل۔
**تڼ تڼا** :- (ت+ ن + ړ+ ت+ ن + ړا ) [پ ، اس صو ، مؤ ، وا ، ج : تڼ تڼاوې](۱) شور زوږ ، آواز ، غږ (۲) افواه ، مشهوري (۳) انګۍ ، په غړۀ آواز راستنېدل۔
**تڼکار** :- (ت+ ن + ړ + کا + ر ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) تڼګهار (۲) سخته یخني۔
**تڼـول** :- (ت+ ن+ ړ+ و + ل ) [اَف : پ (قـاموس) مـص مـت ] پـه وهلـو وهلـو نیمزاله کول ، ډېر ټکول۔
**تڼهـار** :- (ت+ ن+ ړ+ هـا+ ر ) [اَف : پ (قـاموس) اس صـو ، مـذ ](۱) تنـا ، دآسمان ګړز ګړوز ، (۲) د زمري یا پړانګ آواز۔
**کول** :- (اَف ، اص (۱) د آسمان ګړز ګړوز کول (۲) د زمري یا پړانګ آواز کول
**تَڼۍ** :- (ت+ ن+ ړَۍ) [پ ، اس ، مؤ ]تُکمه ، تسمه ، بټن ، ګرَوې
**پرانستل** :- اص ، تڼۍ خلاصول ۔
**پرشلول** :- اص (۱) څۀ کار پسے ډېر کوښښ کول ، ځان کړول (۲) بټنې پرِ شلول۔
**پرشلېدل** :- اص ، څۀ کار پسې ډېر کوښښ کېدل۔
**ترل** :- اص (۱) بټن بندول ، ګروې ترِل (۲) د چا د عزّت خیال ساتل۔
**شــلول** :- اص (۱) بټنـې شـلول ، (۲) ډېـر کوښـښ کـول (۳) بـې عزّتـه کـول (۴) زیات غصه کېدل۔
**شلېدل** :- اص (۱) بټنې شلېدل (۲) کوښښ کېدل (۳) بې عزّته کېدل۔
**په چاتڼۍ شلول** :- اص ، څوک د څۀ کا د پاره د راضي کولو په لړ کښې خپـل وَس کول۔
**د چا تڼۍ شلول**:- اص (۱) د چا ګرېوان تـه لاس اچول او بټنې شلول (۲) د چابې عزتي کول ، بې آبه کول۔
**تڼي وڼي** :- (ت+ ن + ړي+ و + ن + ړي) [پ ، ص] ذرې ذرې ، ربزه ربزه۔
**تَنزانیه** :- (ت+ ن + زا+ ن + یه ) [اس معرفه ]د افریقې یو ملک ۔
**تَنــزرے** :- (ت+ ن + ز+ رے) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: تنـزري] تنځـرے ، تمځرے ، یو خړ رنګے مرغے چې خلق ئې روژدے کوي او په شپېلک ئې خېژوي چې بیا د کیرا کاکا آواز کوي۔
پــه تنزري نـن د ګانده حال معلوم دے
ولــې بـند شـي د هـلکو په کړکومه خوشحال خان
**تنزّل** :- (ت+ ن+ ز+زُ+ ل ) [ع، اس مذ ](۱) زوال ، کمے کُوزېدنه ، پستي (۲) د درجې نه ماتېدل۔
**تنسته** :- (ت+ ن + س + تـه ) [پ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج: تنسـتې ]تـانۍ ، هغـه مزي چې جولائې د کپړې وو بـدلو د پـاره پـه اُوږدو اُوږدو د پټۍ پـه شکل کښې لګوي۔
د خــبــر تـنـسـتې دي هــر چــا اېښے
د چا شعر شاږ ختما د چا پشمین دے کامګار خټک
**کول** :- اص ، شرع کول ، لاس پر لګول۔
**تنسوکه** :- (ت+ ن + سُو+ که ) [پ ، اس ، مؤ ]د پخوانۍ زمـانې د یـوې نرمې او قیمتي کپړې نُوم۔
که تنسوکه په تن اغوندې حلوا خورې
خــو آخر د مرګ سرے ئې اوبه مرې خوشحال خان
**تَنسیخ** :- (ت+ ن+ سي + خ) [ع ، اس ، مذ ]منسوخ کول ، ردّ کول ، باطلول۔

**تَنشا** :- (ت+ ن+ شا ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ]دبدبه ، شان شوکت ، جلال ، شهرت ـ

**تَنظيم** :- (ت+ ن +ظي + م) [ع ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تنظيمُونه] (۱) بندوبست ، انتظام ، ترتيب (۲) ډله ، پارټي ، غُونډه ـ

**جوړول** :- اِص ، ډله جوړول ، پارټي جوړول ـ

**ماتول** :- اِص ، ډله ماتول ، پارټي ماتول ـ

**تَـنفس** :- (ت+ نَ+ ف+ فُ+ س ) [ع، اِس ، مذ ، وا ، ج : تنفّسونه] (۱) ساه اخستل ، سېلېدل ، (۲) ساه لنډېدے ـ

**کول**:- اِص ، ساه اخستل ، سېلېدل ـ

**تَنقيد** :- (ت+ ن + قي + د ) [ع، اِس ، مذ ، وا ، ج: تنقيدُونه ] جاج: لټون ، د څهٔ کلام ښهٔ والے يا بدوالے په ګوته کول ـ

**کول** :- اِص ، د څهٔ کلام ښهٔ والے يا بدوالے په ګوته کول ، جاج کول

**کېدل** :- اِص ، د څهٔ کلام ښهٔ والے يا بدوالے په ګوته کېدل ، جاج کېدل ـ

**تنقيدي** :- (ت+ ن+ قي + دِي) [فا ، اِس ]د تنقيد سره تعلق لرُونکے ـ

**تنکے** :- (ت+ ن+ کے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج : تَنکي ، مؤ : تنکۍ ] (۱) نازک ، نرم ، تازه (۲) نوے ټوکېدلے (۳) نوے پيدا شوے ـ

**نهالېدل** :- اِص ، کچه عمر کښې د ګور خاورو ته تلل ـ

**تنکۍ پيغله** :- (ت+ ن + کي + پې +غ + له ) [پ ، اِس ص ، مؤ ]نوې پيغله ، کچه پيغله ، تنکۍ دانه ـ

**تنکے توب** :- (تنکے + تو + ب ) [پ ، اِس ص ، مذ ] تنکے والے ، تنکے تيا ، تازه والے ـ

**تنکي تيا** :- (تنکي + ت + يا ) [پ ، اِس صو ، مؤ ] و ـــ تنکے توب ـ

**تنکي ځواني** :- (ت+ ن + کي + دز + وا + ني) [پ ، اِس ص ، مؤ ] نوې ځواني ـ

**تنکۍ خبـرې**:- (ت+ ن + کۍ + خ + ب + رے ) [پ ، اِس ، ص مؤ ] نازکې خبرې ، د نخرونه ډکې خبرې ، ورې ورې خبرې ـ

**تنکۍ دانه** :- (ت+ ن + کۍ + دا + نه ) [پ ، اِس ص ، مؤ ] (۱) کچه ميوه ، د فصل کچه دانه (۲) په وجود نوې راختُونکې دانه (۳) تنکۍ پيغله ـ

**تنکے زلمے** :- (ت+ ن+ کے + ز + ل + مے ) [پ ، اِس ص ، مذ وا ، ج: تنکي زلمي ] نوے ځوان ـ

دا فکونه کړه چې زهٔ ځوان يم مرګ مې نشته
ډېر تنکي زلمي و ګورته تللي په ځوانۍ دي      خوشحال خان

**تنکۍ شپه** :- (ت+ ن+ کۍ +ش + په) [پ، اِس ص ، مؤ ] کچه شپه ، اول شُومه

**تنکۍ غرمه** :- (ت+ ن + کۍ + غ + ر + مَه ) [پ ، اِس ص ، مؤ ] کچه غرمه ـ

**تَنکـي لاسُـونه** :- (ت+ ن + کي + لا+ سُو+ نـه ) [پ ، اِس ص ، مـذ ] (۱) واړه لاسُونه، د ماشومانو لاسونه ، (۲) نرم او نازک لاسُونه ، ښکلي لاسونه ـ

**تنکۍ مينه** :- (ت+ ن + کۍ + مي + نه) [پ، اِس ص، مؤ] نوې مينه، تازه مينه

**تنکې والے** :- (ت+ ن + کې + وا +لے ) [پ ، اِس ص ، مذ ] و ـــ تنکے توب ـ

**تنـګ** :- (ت+ ن + ګ ) [فا ، ص ، مذ (مؤ ، وا ـ تنګه ،ج: تنګې) ] (۱) چې سوريا برئې کم وي راټول (۲) تربت ، تکليف کښې ، پريشانه (۳) تنګے ، د غُرونو په مينځ کښې تنګه لار (۴) غريب ، خوار ، عاجز (۵) تانګ د اَس پټۍ ـ

ستا د وصـل له نسـيمه اُميدوار يم
که هجران لکه غنچه کړم په زړهٔ تنګ      کامګار خټک

غوريا خپل که په ناکام ورسره زيست کا
پــه رضا ورته بنګش نيولے تنګ دے      خوشحال

**تُنګاچه**:- (ت+ ن + ګا + چه ) [اَف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تُنګاچې ] تُنګاڅه ، دُونکاچه ـ

**تَنـګ خولے** :- (ت + ن + ګ + خُـو + لـے ) [پ ، اِس ص ، مـذ ، وا ، ج : تنـګ خولي] (۱) چې خولهٔ ئې تنګه وي ، د تنګېخولې څيز (۲) د خاورو مټې يا چاټۍ ـ

**تنګ خپلے** :- (ت+ ن + ګ + خپ +لے ) [پ (ظفر) اِس ، مذ ]د آخري چارشنبې يا د صفرې په ورځ د چُوري يو رسم ، د ادت خپلې ضد ـ

**تنګ دارُو** :- (ت+ ن + ګ + دا + رُو ) [اَف ، اِس ، مذ ] هغه دارُو چې زنانه ئې د خپلو متيازو د ځاے د تنګولو د پاره استعمالوي ـ

**تنګدسـت** :- (ت+ ن + ګ + دَ + س + ت ) [فا ، اِس ص ، مـذ (مـؤ ، وا: تنګدسته ، ج: تنګدستي)] تنګ لاسے ، غريب ، خوار ، عاجز ـ

**تنګدستي** :- (ت+ ن + ګ + دَ + س + تي) [فا ، اِس ، مؤ ] غريبي ، خواري ، عاجزي ، تنګسيا ، تنګسه ـ

**تنګـدل** :- (ت+ ن + ګ+ د + ل ) [فا ، اِس ، مذ وا ، ج: تنګدلان ، (مؤ ،وا : تنګدلـه ، ج: تنګدلې)] (۱) تنګ زړے ، بې حوصلې ، لنډ پارے (۲) خفه ،ظهير ، بې طبعې ـ

زنهار مه کوه غرض پ تنګ دلانو      کاظم خان شيدا

**تنګ زړے** :- (ت+ ن + ګ + ز + ړے ) [پ ، اِس ص ، مذ ، وا ، ج: تنګ زړي ، (مؤ : تنګ زړې)] و ـــ تنګدل ـ

**تنګسـه** :- (ت+ ن + ګ + سـه ) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: تنګسې ] تنګسيا ، تنګدستي ، غريبي ـ

په راتلل د تنسې څهٔ په اوربدلا
لور په لور درځخه لاړ شي همراهان اوس      سکندر خان خټک

**تَنګسـيا** :- (ت+ ن + ګ + س + يـا) [پ ، اِس ، مـؤ ] تنګسـه ، تنګدسـتي ، غريبي

**تنګ کـوچ** :- (ت+ ن + ګ + کو + چ ) [اَف : پ (قاموس) اِس ،مذ ] د هلکانو يوه لوبه چې د شطرنج په ډول کېږي ـ

**تَنګ لاس** :- (ت+ ن+ ګ + لا+ س) [پ ، اِس ص ، مذ] و ـــ تنګدست ـ

**تنګوالے** :- (ت+ ن + ګ + وا + لے ) [پ ، اِس ص ، مذ ] (۱) غريبي ، عاجزي ، تنګدستي ، تنګي (۲) کم والے ، لنډوالے ـ

**تنګ وخت** :- (ت+ ن + ګ + وَ + خ + ت ) [پ ، اِس ، مذ ]لنډ وخت ، کم وخت

**تنګـول** :- (ت+ ن + ګ + و + ل ) [پ ، مـص مـت ]تربټـول ، تکليـف ورکـول ، پرېشانه کول ـ

**تنګونـه** :- (ت+ ن + ګ + و + نـه ) [پ ، حمـص ]تربټونـه ، تکليـف ورکونـه ، پرېشانه کونه ـ

**تنګـوُونکي** :- (ت+ ن + ګ + وُو + ن + کـے ) [پ ، اِس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: تنګـوُونکي ، (مـؤ : تنګـوُونکې ] تربټـوُونکے ، تکليـف ورکـوُونکے ، پرېشانه کوُونکے ـ

**تنګه** :- (ت+ ن + ګه ) [پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : تينګې ]د تنګ مؤنثه صيغه ـ

**تنګه** :- (ت+ ن + ګه ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تنګې] ټنګه ، يوه پخوانۍ سکه ـ

**تنګه** :- (ت+ ن + ګه ) [اَف : (قاموس) کلمه ]دا د امر کلمه ده ، هر کله چې

اُوښ **د**خوبه راويښنولے شي او بار پر تړلے کېږي نو دا غړ پر اوکړے شي ، چې هغه خپله سينه لړه شان د مزکے نه اوچته کړي او د بار تړلو رسۍ ئې د سينے لاندِ اوويستلے شي -

**تَنګې** :- (ت+ ن + ګے ) [پ ، اِس مذ ، وا ، ج: تنګي ]تنګ ، د غُرونو په مينځ کښې تنګه لار -

**تنګـي** :- (ت+ ن + ګـي ) [فـا ، اِس ، مـؤ ](۱) تنګـوالے ، غريبـي ، خـواري ، لاچاري ، تنګسيا ، نيستي (۲) مُصيبت ، (۳) سپکوالے-

**تنګي**:- (ت+ ن + ګي ) [پ ، اِس معرفه ]د پېښـور پـه ضلع کښـې د چارسـدے په تحصيل کښې يو کلے -

**تنګېدل** :- (ت+ ن + ګے + د + ل ) [پ ، مص لا ](۱) تربتېدل ، خفـه کېـدل ، پرېشـانه کېـدل (۲) خوارېـدل ، نېسـتمن کېـدل (۳) د بيمـار مـرض زياتېدل -

**تنګېدنه** :- (ت+ ن + ګے + د + نه ) [پ ، حمص ](۱) تربتېدنه ، پرېشانه کېدنه ، خفـه کېدنـه (۲) خوارېدنـه ، نېسـتمن کېدنـه ، (۳) د بيمـار مـرض زياتېدنه -

**تنګېـــدُونکے** :- (ت+ ن + ګـــے + دُو + ن + کـــے ) [پ ، مـــف ، مـــذ ، وا ، ج: تنګېدُونکي (مؤ : تنګېدُونکې)](۱) تربتېـدُونکے ، پرېشـانه کېـدُونکے ، خفه کېدُونکے (۲) خوارېدُونکے ، نېستمن کېدُونکے (۳) د بيمار مرض زياتېدُونکے -

**تنور** :- (ت+ نو+ ر ) [ع، اِس ، مذ ، وا ، ج: تنورُونه ]و ــــــ تَندور

**اچول** :- اِص ، تنور کښې اور اچول ، تنور ګرمول ، تنور تودول، تنور د ډوډۍ پخولو د پاره تيارول

**تودول** :- اِص ، و ـــــــــــ تنور اچول -

**ګرمول** :- اِص ، و ـــــــــ تنور اچول -

**تنورپـاک** :- (تنـور+ پـا+ک ) [اَف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ] د تنورنـه ايـره ويستلو بېلچګۍ شان -

**تنوري** :- (ت + نو+ ري ) [پ ، اِس ، ص ، مؤ ]په تنورپخه ډوډۍ -

**تنـول** :- (ت+ ن + و+ ل ) [اَف : پ (قـاموس) مـص مـت ] (۱) غـرول ، د آسـمان تنا ګړزا کول (۲) په مزي کښې پېرل (۳) قدرمن کول -

**تنولے** :- (ت+ ن+ وَ + لے ) [اَف : پ (قـاموس) مف ، مـذ ، وا ، ج: تنـولي (مـؤ : تنولې)](۱) غَرولے ، پـه ګړزا غـرزا شـوے (۲) قـدرمن کـړے (۳) پـه مزي کښې پېرلے -

**تنونـه** :- (ت+ ن + و+ نـه ) [اَف : پ (قـاموس) حمـص ](۱) غرونـه ، ګـړزا غـرزا کونه، (۲) په مزي کښې پېرنه (۳) قدرمن کونه -

**تنوُونکے** :- (ت+ ن + وُو + ن + کے ) [اَف : پ (قـاموس) اِس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: تنـوُونکي مـؤ : تنـوُونکې ](۱) ګـړزا غـرزا کُـوونکے (۲) پـه مـزي کښـې پېرونکے
(۳) قدرمن کوونُکے -

**تنها** :- (ت+ ن + ها ) [فا ، ص ]يواځې ، ګوښي ، بېله ، ځان ته -

زۀ تنها د عشق په لار بلکې آفتاب يم
محتاج کله د حشمت د شوکت زۀ يم کامګار خټک

**تلل** :- اِص ، يواځې تلل ، ګوښے تلل ، بېله يُون کول -

**تنهـائي** :- (ت+ ن+ هـا+ ئـي) [فـا ، اِس ، مـؤ ](۱) جـدائي بېلتـون (۲) ګوشـه نشيني ، خلوت -

**تنۍ** :- (ت+ ني ) [اَف : پ (قاموس ) اِس ، مؤ ]ترټرۍ خبرې -

**تني** :– (ت+ ني ) [پ (ظفر ) ص ، مؤ ]شخصي ، ذاتي -

**خپلوان** :- (ظفر ) اِص ، د ويني خپلوان -

**تَني** :- (ت+ ني ) [اَف : پ (قاموس ) کلمه ]تېنې ، څخه ، ورنه ، ځنې ، ترېنه -

**تېنے** :- (ت+ نے ) [پ ، کلمه ] و ـــــ تني -

**تنېـدل** :- (ت+ نـې+ د+ ل) [اَف : پ (قـاموس) مـص لا] (۱) غرېـدل ، د آسـمان ګړزا غرزا کېدل (۲) په مزي کښې پېرلے کېدل (۳) قدرمن کېدل -

**تنېدلے** :- (ت+ نې + د+ لے) [اَف : پ (قاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج: تنېـدلي (مـؤ : تنېدلې)](۱) غرېدلے ، ګړزا غرزا کړے (۲) پـه مـزي کښـې پېـرلے شـوے (۳) قدرمن شوے -

**تنېدنګ** :- (ت+ نې + د+ ن + ګ ) [اَف : پ (قاموس ) حمص ] و - تنېدنه -

**تنېدنه** :- (ت+ نې+ د+ نـه ) [اَف : پ (قـاموس ) حمص ] (۱) تنېـدنګ ، تنېـدۀ ، غَرېدنـه ، د آسـمان ګـړزا غـرزا کونـه (۲) پـه مـزي کښـې پېـرلے کېدنـه (۳) قدرمن کېدنه -

**تنېـدُونکے** :- (ت+ نـے + دو + ن + کـے ) [اَف : پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا، ج: تنېدُونکي (مؤ : تنېدُونکې)](۱) غرېدُونکے ، آسمان ګړزېدُونکے (۲) په مزي کښې پېرلے کېدُونکے (۳) قدرمن کېدُونکے-

**تنېدۀ** :- (ت+ نې+ دۀ ) [اَف : پ (قا موس) حمص ] و ــــــــ تنېدنه-

**تنې نا**: :- (ت+ نـې+ نـا ) [اِس ، صـو ، مـؤ ]ګُونېـدل ، رو رو نغمـه يـا سـندره د ځان سره وئيل -

**تو** :- (تو) [اِس صو ، مذ ]د سپي د توکارلو آواز ، د سپي د رابللو آواز -

**کول** :- اِص ، سپے توکارل ، سپے رابلل ، سپے شړل -

**تَو**:- (تو) [اَف : پ (قاموس ) ، اِس مذ ]نو تُوت ، تُوت -

**تُو** :- (تو) [اِس صو ، مذ ](۱) د توکلو آواز (۲) د لعنت او نفرت کلمه-

**کول** :- اِص ، تُوکاڼي توکل -

**تُو** :- (تُو ) [اَف : پ (قاموس ) اِس ](۱) لعنت ، کرکه ، نفرت (۲) تُوکاڼي ، (۳) تبه -

**توا** :- (ت+ وا) [پ ، اِس مخفّف ]ته وا ، ته به وائي ، تۀ وائي -

**تو،آ، تو،آ** :- (تو+ آ+ تو +آ ) [پ ، (ب، خ) اِس صو ]سپے په څۀ څيز پسې کـول ، اَچيش کول ، تو تو کول -

**تواتـو** :- (ت+ وا+ تـو + ) [اَف : پ (قـاموس ) اِس ، مـذ ]د شـرعې خلاف يـا پـه ناجائز ډول روپۍ پېسې موندل -

**تواتو کول** :- (اَف) اِص ، په ناجائز طريقې پيسې پېدا کول -

**توار** :- (ت+ وا+ ر ) [اَف : پ (قاموس ) اِس ، مذ ]يوه مشهوره کپړه-

**تَوارد** :- (ت+ وا+ رُ + د ) [ع ، اِس ، مذ ](۱) يو شانوالے ، په يو ځاے راتلنه (۲) د دوؤ شاعرانو په يو مضمون په يو قسم خيالات ښرګندول -

**تواره** :- (ت+ وا+ رَه ) [اَف : پ (قاموس ) اِس ، مؤ ]يو قسم کېږدۍ-

**تواريخ**:- (ت+ وا+رِي +خ ) [ع ،اِس، ج ] تاريخ ، د زړې زمانې د حالاتو کتاب

**تَوازن** :- (ت+ وا + زُ+ ن) [ع ، اِس ، مذ ]برابروالے ، په يو وزن کېدل ، تناسب -

**تَواضع** :- (ت+ وا+ ضُ+ ع ) [ع ، اِس ، مذ ](۱) عاجزي ، کميني (۲) خاطر، مدار (۳) نياز، نذر (۴) دعوت ، مېلمستيا -

**کول** :- اِص (۱) عاجزي کول ، کميني کـول (۲) خاطر مـدار کـول (۳) نـذر نياز وَرکول (۴) دعوت کول ، مېلمستيا کول -

**کېدل** :- اص (۱) عاجزي کېدل (۲) خاطر مدار کېدل (۳) نذر نیاز ورکېدل (۴) دعوت کېدل ، مېلمستیا کېدل .

**تَوالد او تناسل** :- (ت+ وا+ لُ + د او ت + نا + سُ + ل) [ع ، اس ، مذ] اولاد پیدا کول او نسل زیاتول .

**تَوام** :- (ت+ وا+ م) [ع ، اس ، مذ]جوړه ، غبرګ ، غبرګوني ، د دوؤ بچو د یوې مور نه په یو ځل پیدا کېدنه .

**توان** :- (ت+ وا+ ن) [پ ، اس ، مذ]طاقت ، زغم .

توان او زور مې واړه تۀ ئې
بې تانۀ پېرم په توره — خوشحال

**درلودل** :- اص ، طاقت لرل ، توان لرل ، زغم لرل .

**رسېدل**:- اص ، طاقت رسېدل ، د څۀ کار کولو جوګه کېدل .

که په څۀ هنر دې هومره توان رسېږي
چې به تۀ کړې د مرګي لښکرې ماتې — خوشحال

**توان لرل**:- اص و.............. توان درلودل .

لَه عدمه ئې عالم واړه موجود کړو
لري هسې رنګ توان زما حبیب — خواجه محمد بنګښ

**نۀ لرل** :- اص ، طاقت نۀ لرل ، همت نۀ لرل .

توان د سوال او د ځواب راڅخه نشته
هېڅ قابو دې د عتاب راڅخه نشته — علي خان

**ورکول** :- اص ، طاقت ورکول ، همت ورکول .

توان د طاعت راکړه چې اخلاص ورسره مل وي
نۀ هغه طاعت چې شي په رم په لباس — خوشحال خان

**له توانه پرېوتل** :- اص ، بې طاقته کېدل ، له توانه وتل .

**له توانه وتل** :- اص و......... له توانه پرېوتل .

**له توانه ورته وتل** :- اص ، څۀ څیز ته ډېر زیات لېواله کېدل ، په ډېره تلوسه کښې ورته کېدل .

**تَوانا** :- (ت+ وا+ نا) [فا ، ص]طاقتور ، مضبوط ، زورور ، زبردست .

غم زده په غم کښې واړه توانا دي
په دې ښار کښې نېستګار و ناتوان نشته — بېدل

**تَوانائي** :- (ت+ وا+ نا + ئي) [فا ، اس ، مؤ]طاقت ، زور ، قوت ، قدرت .

**تَوانګر**:- (ت+ وا+ ن + ګ + ر) [فا ، اس ص ، مذ] (۱) طاقتور ، زورور (۲) مالدار ، بختور ، شته من .

د دنیا توانګر واړه ګدایان دي
اے غني د معرفت ګهراندوزه — مرزا خان انصاري

**توانول** :- (ت+ وا+ ن + و + ل) [پ ، مص مت]توان ورکول ، امداد ورکول ، ډاډ ورکول ، په مال یا په متېو پُشتي ورکول .

**توانونګ** :- (ت+ وا+ ن + و +ن +ګ) [آف : پ (قاموس) حمص] و- توانونه .

**توانونه** :- (ت+ وا+ن + و + نه) [پ ، حمص]توانونګ ، توان ورکونه ، امداد ورکونه ، ډاډورکونه ، پرمال یا په متېو پُشتي ورکونه .

**توانووُنکے** :- (ت+ وا+ ن + وُو + ن + کے) [پ ، اس فاع ، مذ ، وا ، ج: توانوُونکي (مؤ : توانووُنکې) ] توان ورکوونکے ، امداد ورکوُونکے ، ډاډ کوُونکے ، په مال یا په متېو پُشتي ورکوُونکے .

**توانېدل** :- (ت+ وا+ نې + د +ل) [پ ، مص لا]توان لرل ، طاقت لرل ، زغم لرل ، د ګزارې جوګه کېدل .

زاهدان چې د رندانو تل پېغور کا
که توانېږي ازلي قسمت د نور کا — خوشحال خان

**توانېدلے** :- (ت+ وا+ نے + دَ + لے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: توانېدلي ، (مؤ : توانېدلے)]توان مُوندلے .

**توانېدنګ** :- (ت+ وا+نې + دَ + ن + ګ) [آف : پ (قاموس) حمص] و- توانېدنه

**توانېدنه** :- (ت+ وا+ نې + د + نه) [پ ، حمص]توانېدنګ ، توانېدۀ ، توان لرنه ، طاقت لرنه ، زغم لرنه .

**توانېدُونکے** :- (ت+ وا+ نے + دُو + ن + کے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: توانېدُونکي (مؤ : توانېدُونکې)] توان لرُونکے ، طاقت لرُونکے ، زغم لرُونکے .

**توانېدۀ** :- (ت+ وا+ نے + دۀ) [پ ، حمص]و-توانېدنه .

**توب** :- (تو + ب) [پ ، مذ]یوه لاحقه چې د اسم یا صفت په آخر کښې د کیفیت یا حالت ښکندولو د پاره استعمالېږي ،لکه : سړیتوب ، لېونتوب ، عاشقتوب ، وغېره .

**توباتوب** :- (تو+ با+ تو+ ب) [پ ، اس ، مذ]توبه توبه ، په توبو توبه .

**توبره** :- (تو+ ب + رَه) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: توبرې] (۱) د اس د چڼې دانې کڅوړه (۲) هغه غله چې اَس ته سحرماښام ورکولے شي.

**توبره اچول** :- اص (۱) توبره خېژول ، د غلې کڅوړه د اَس سرته اچول چې خولۀ ئې په هغې کښې دننه وي (۲) څوک خپل ځان ته موتازه کول ، خپل لاس ته کښېنول

**خېژول** :- اص- و .......... توبره اچول .

**خولې ته توبره اچول**:- اص ، چپ کېدل ، په څۀ خبره خاموش پاتې کېدل .

**توبره** :- (تو + ب + ره) [آف : پ (قاموس) اس ، مؤ]د اسونو او خرونو مرض

**تُوبرے** :- (تُو+ ب+ رَے) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: تُوبري] (۱) د غشي څوکه (۲) د پخې تبرۀ څُوکه .

د اشنا د عشق توبرے زما زړګے شو
کړلے نۀ شم ځکه حکم په وکښو — حمید
تور باڼۀ ئې تور توبرې دي راڅرخېږي
که راپورته محبوبا سترګې شهلا کا — خوشحال خان

**تُوبري** :- (تو+ ب + ري) [آف : پ (قاموس) اس]یو قسم کښیده یا بخیه .

**توبه** :- (تو+ بَه) [ع ، اس ، مؤ ، وا ج : توبې] (۱) پښېماني ، استغفار ، معافي ، ندامت (۲) قول ، قسم ، لوظ (۳) خدا ے مه کړه ، خدا ے مِ وساته (۴) د حېرانګي اظهار (۵) د انکار کلمه .

ها ے توبه د عشق د پټو سرو لمبو نه
نۀ وابۀ نۀ ئې لرګي لګي په تا — خوشحال

**ایستل** :- اص ، پښېمانه کېدل ، معافي غوښتل ، توبه ګارېدل ، استغفار کول ، توبه کښل .

**ماتول** :- اص ، په کړي لوظ ټینګ نۀ پاتې کېدل .

زۀ په څو څو ځکه توبه اوباسم نصوحه
ماته مې توبه کړه چې په لبو کښې تۀ مُسې — خواجه محمد

**کښل** :- اص - و.......... توبه ایستل .

**توبه توبه** :- (توبه + تو + به) [اس ، مکرر ] بېزاري ، پښېماني ، استغفار .

**توبه ګار** :- (توبه + ګا + ر) [فا ، اس ، مذ (مؤ ، وا : توبه ګار ، ج: توبه

ګارے] پښېمانه ، نادم ـ

که منصور غونديږ په دار او په سنګسار شم

نــشــتــه دا چــې ستا لـه مينې توبه ګار شم حميد

**کول** :- اص ، پښېمانه کول ، په خپلو کړو ستومانه کول ، توبې پرويستل ـ

**کېدل** :- اص ، پښېمانه کېدل ، په خپلو کړو ستومانه کېدل ـ

**توبين** :- (تو + بي + ن) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ]خوند مزه ، ذائقه ـ

**تَوبين** :- (تَو + بي + ن ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ]د شوملو هغـه شنې او ترشې اُوبهٔ چې کُرت تر جوړوي ـ

**توپ** :- (تو + پ) [فا ، اِس ، مذ ، وا ، ج : توپُونه ] توپـه ، يوه جنګي وسله چې غټې غټې ګولۍ پرويشتلې شي ـ

**چلول** :- اص (۱) توپـه چلول ، توپـه خلاصـول ، تـوپ ويشـتـل (۲) لاټـې شـافـې کول (۳) غټ ټيز اچول ـ

**ويشتل** :- (اَف) اص و ــــــ توپ چلول ـ

**توپان** :- (تو + پا + ن) [اَف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: توپانُونه ]

(۱)طوفـان ، زُول سيلۍ (۲) نااشنا کـار (۳) هغـه کنبـيده کـړې کپـړه چې زنانه ئې پخ خپلو پائينځو پورې ګنډي (۴) لـوے غـم مصيبت ، لويـه حادثه ـ

**توپانی** :- (تـو + پـا + نـی) [اَف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ] (۱) د ټوقـو خبـرې دشتې (۲) بې مطلبه قصې ـ

**کول** :- (اَف) اص (۱) د ټوقو خبرې کول، وشتې کول (۲) بې مطلبه قصې کول

**توپچي** :- (تو + پ + چي) [فا ، اِس ، مذ ، وا ، ج : توپچيان ] توپه چلوُنکے ـ

**توپخانه** :- (تو + پ + خا + نه) [فا ، اِس ، مؤ ، وا ، ج : توپخانې ] (۱) توپ (۲) د څوتوپو مجموعه ـ

**توپړ** :- (تو + پ + ړ) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ] صدمه ، حادثه ، واقعـه ، ضرر ، نقصان ، مُصيبت ـ

**تُوپړک** :- (تو + پ + ړَ + ک) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ] پوستين ، وړ جم ـ

**توپ سازي** :- ( تو + پ + سا + زي) [ فا ، اِس ، مؤ ]د توپې جوړولو کار يا هُنر

**توپک** :- (تو + پ + ک) [پ ، فا ، تفنګ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: ټوپکونه، توپکـان ] ټوپـک ، رفل ـ

**توپـک لېچ** :- (تـو پـک + لـې + چ) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ] کُنـداغ ، د ټوپـک کُنـده ، هغـه لـرګے چـې د ټوپـک د نلـۍ شـاته لګېـدلے وي او ويشتُونکے ئې د خپل مټ سره ټينګ نيسي ـ

**توپلندے** :- (تو + پ + لَ + ن + دَے ) [پ ، اِس ، مذ ]توپانې ـ

**توپنچه** :- (تو + پَ + ن + چَه) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: توپنچې ]تماچه ـ

**توپنړے** :- (تو + پ + ن + ړے ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ] توتنکے ـ

**توپه** :- (تو + په) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: توپې ]توپ ـ

**تَوپير** :- (تو + پي + ر) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ]فرق، تفاوت ، پرخ ـ

**کول** :- (اَف) اص ، فرق کول ، پرخ کول، تفاوت کول ـ

**توت** :- (تو + ت) [اَف : پ (قاموس) مذ ]په غوړو کنبې څهٔ ځيز سُور کول ـ

**تُوت** :- (تـو + ت) [پ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: تُوتـان ]يـوه ونـه چـې تـوره او سـپينه مېوه کوي ، چې شاتوت ئې هم يوه غوره قسم دے ـ

**تُوت خورکه** :- (تو + ت + خو + ر +که) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: تُوت خورکې ]يوه وړه خوږ آوازے مرغۍ چې د تُوتانو په وخت کنبې ښکاره کېږي او توتان خوري

**تُوت خوره** :- (توت + خ + و + رَه) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تُوت خورے ]يوه سره رنګې مرغۍ ـ

**تُوتړے** :- (تو + ت + ړَے ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تُوتړي ] تر تړے ، تُوړ تړے ، ګنګوړے ـ

**توتنبه** :- (تو + ت + نبه) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ] نرم او پوست کانړے ـ

**توتکـارے** :- (تـو + ت + کـا + رَے) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج: توتکاري ]توتکرکے ، يو قسم مرغۍ ـ

**توتکرکے** :- (تـو + ت + کَ + ر + کـے) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج: توتکري ]يو قسم مرغۍ چې ډېره تېزه اَلوزي ، توتکۍ توتکے ـ

**تُوتکه** :- (تو + تَ + که) [اَف پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تُوتکې]

(۱) چنغړک ، مرمړۍ ، کړغروچ (۲) د مېچنې غاړه (۳) د لرګي شپېلۍ

**تُوتکه** :- (تو + ت + که) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تُوتکې]

هغـه ګراڅـه ، لـد يـا جـال چـې کـانې پکښې واچـولې شـي او د خوړ يـا درياب د اُوبو د تم کولو د پاره د فرش په ډول استعمالېږي ـ

**توتکۍ** :- (تو + ت + کي) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ] - توتکرې

**تـوتکۍ سبک** :- (تـوتکۍ + س +بَ + ک) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ] يـو نازک بُوټے چې نرمې پاڼې لري ـ

**توتکرے** :- (تو + ت ک+ رے) [پ (ظفر)اِس،مذ،وا،ج: توتکي ]و- توتکرے

**توتلے** :- (تو + ت + لے ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: توتلي] د دېګ راکُوزولو په وخت په لاس کښې نيوُونکې کپړه ـ

**توتن** :- (تو + ت + ن) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ]نخښنه ټکۍ ـ

**توتنکــه** :- (تــو + ت + ن + ر +کــه) [اَف : پ (قــاموس) اِس ، مــؤ وا ، ج: توتنکې ]خڅوزے ، خڅنے ، توتنکے ، توتنے ـ

**توتنکي** :- (تو + ت + ن + ړ +کي) [اَف : پ (قاموس) اِس مذ ] (۱) خڅوزي ، خڅوني ، توتنے (۲) د زرو بُوره ـ

**توتنے** :- (تو + ت + ن + ړے ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ] توتنکے ـ

**توتنکے** :- (تو + ت + ن + کے ) [پ (ظفر) اِس ، مذ ، وا ، ج: توتنکي ] توتنے ، خڅنے ـ

**توتنے** :- ( تو + ت + نے ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: توتني ]و ـ توتنکې

**توتنے** :- (تو +ت + نے ) [اَف پ (قاموس) مؤ ]د خمبير هغـه خيـرے چې د لاس نه ودُوړېږي ـ

**تُـو تُـو** :- (تـو + تُـو) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، صو ، مـذ ](۱) د چرګـو د رابللو آواز لکه آ ، آ ، کت ، کت (۲) د ماشومانو په ژبه چرګ ـ

**کول** :- اص ، چرګې رابلل ، چرګوته آواز کول ـ

**توتو** :- (تو + تو) [پ ، اِس ، مذ ](۱) سپے (۲) د سپي د رابللو آواز ـ

**کول** :- اص ، سپے ځان ته رابلل ـ

**تُـو تُـو پښ** :- (توتـو + پ + ښ) [اَف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ] مُلا چرګـک ، ګډي چرګ ـ

**تُوته** :- (تـو + تـه) [اَف: پ (قـاموس) اِس ، مـؤ ، وا ، ج: تُـوتې ](۱) کُـوکرے د سپي بچوړے (۲) د شپېلۍ نچه ـ

**تُوتۍ** :- (تو + تۍ) [اَف : پ (قاموس) ص ]سُولېدلے : سپشتې ـ

**تــوتي** :- (تـو + تـي) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: توتيـان ] طـوطي ، طوطـا ، يـو مشهور مارغهٔ ـ

**توتیا** :- (تو + ت + یا) [پ ، ع :طوطیا ، اس ، مذ ] (۱) د رنځو کانړې چې مېده ئي اُړه کړي او بیا ئي په سترګو پورې کوي (۲) نیله توته ، هغه دارُو چې د سترګو د خوږ د پاره استعمالېږي ـ

لا به کله ځاے زما په سترګو اوکړې
تـهٔ مئین زما د دوؤ سترګو توتیا ئې
جـګي جـګي پـه لېمهٔ مې قدم کېښږده
چې پرېندې سترګې مې روغې شي توتیائې — خوشحال خان

**کېدل** :- اِص ، رانځه کېدل ، دارُو کېدل ـ

شپه د انتظار که شوه رانځه زما د سترګو
زهٔ د انــتـظار د وږو ســترګو توتیا شومه — حمزه شنواري

**توتیه** :- (تو + تِي + یه) [پ (ظفر) اس ، مؤ ، وا ، ج: توتئي ]تمهید ، آغاز ـ

**توثیق** :- (تـو + ثي + ق) [ع ، اِس ، مذ ] (۱) پوخوالے ، پوختیـا ، مضبوطوالے ، استحکام (۲) په خولهٔ یا په لیک کښې د څهٔ خبرې تصدیق ـ

**توجّه** :- (ت + و + ج + جُه) [ع ، اِس ، مؤ ] (۱) مخه ، چهٔ تـه مخ کول (۲) رغبت ، خیال (۳) لحاظ ، مهرباني ـ

**توجیه**:- (تو + جي + ه) [ ع ، اِس ، مؤ ] (۱) وجه بیانول یا بلیئل (۲) حُلیه ـ

**توحید** :- (تو + حي + د ) [ع ، اِس ، مذ ]یو الله تعالي منل ، د خداے پاک په یووالي یقین لرل ـ

د توحید په امنیت کښې باور نهٔ کا
د مــشرک پــه ایمان کښې وته وبا — مرزا انصاري

**توخته** :- (تو + خ + تَه) [پ ، اِس ، مؤ ] (۱) آرام (۲) طاقت (۳) زغم ـ

**تُوخرے**:- (تـو + خَ + رے ) [پ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: تُوخري ]د شُملو نچړے ، د شُملو په وېخ کښې پوستکي ، توخه ـ

**تُـوخس** :- (تـو + خ + س) [اَف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ] (۱) تـاوان ، زیـان ، نقصان (۲) حمل پیازېدل یا سپیازېدل ، په خېټه کښې بچے زیاتېدل ـ

**توخنے** :- (تو + خ + نے ) [اَف : پ (قـاموس) ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: تـوخني ] تنور پاک

**توخونے** :- (تو + خُو+ نے ) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج: توخُولي (مؤ : توخُوني)] نیازبین ، نازَوړے ـ

**توخه** :- (تو + خه) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ]و ـــــــ تُوخرے ـ

**توخیر** :- (تو + خي + ر ) [اَف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]خاربښت ـ

**کول** :- (اَف) اِص ، خاربښت کول ـ

**تود** :- (تو + د ) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج: تاؤده (مؤ ، وا: توده ، ج: تودې ] ګرم ـ

په هجران کښې مې صورت له اورته تود دے
ځـــکه ډېـــر مـــې په دلدار پسې مېنود دے — بېدل

**پرراتلل** :- (اَف) اِص ، (۱) د څهٔ څیز په سرپېروے راتلل (۲) په څهٔ کـار ګرم راتلل

**تود کېدل** :- اِص (۱) ګرم ګرم کېدل ، تُند تُند کېدل ، په څهٔ خبره کښې زیاته دلچسپي ښکاره کول (۲) قهرجن کېدل ، غُصه کېدل ـ

**سوړ کېدل** :- اِص (۱) د ګرم ځاے نه ناڅاپي یخ ځاے ته راتلل او بدن یخېدل (۲) د څهٔ کـار کولـو پـه لـړ کښې د ډېر جوش نه پس په څهٔ وجه ناڅاپي قلارېدل ـ

**تودبن ګوغالے**:- (تو + د + ب + ن + کو + غا + لے) [اَف: پ (قاموس) اِس ،مذ ] تنور

**تَودبښت**:- (تو + د + ش + ت + یا تـو د + خ + ت) [پ ، اِس ، مـذ ] ګرمي ، حرارت ، تودوالے ـ

**تــود کــانړے** :- (تــو + د +کـا + ن + ړے ) [پ (ب ، خ) اِس ، مـذ ] تـوده تیـږه د ماشومانو یوه لوبه چې د شپې ګرم کانړے اوغُورزوي او بیا ئي لټوي ـ

**تــودمن** :- (تــو + د + م + ن ) [اَف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ] یـو بُـوټے چـې اول سپین ګل وُکړي او د څهٔ وخت نه پس هغه ګُل تور شي ـ

**تَودنے** :- (تو + د + نے ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج : تودني ] ترکانه ـ

**تودوالے** :- (تو + د + وا + لے ) [پ ، اِس ، مذ ]و ــــــــــ تودبښت ـ

**تودوبن** :- (تو + دو + ب + ن) [اَف : پ (قـاموس) اس ، مذ ] تَودوبے ، حمام ، هغه ځاے چې د لامبلو د پاره پکښې تودے اُوبهٔ وي ـ

**تودوبے** :- (تو + دو + بے ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: تودوبي ] وــــــــــ تودوبن ـ

**تَودوبے** :- (تو + دو + بے ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تودوبې ] د اُوبو ګرمولو کُوزه ـ

**تودخه** :- (تـو + دو + خـه ) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـؤ ، وا ، ج: تـودوخے ] (۱) تاؤ ، ګرمي ، حرارت ، تودوخے (۲) ګرمه سیمه ، د سردبویا سارهٔ ضد ـ

**کېدل** :- (اَف) اِص ، ګرمي کېدل ، حرارت زیاتېدل ـ

**تودوخے** :- (تو + دو + خے ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ]و ــــــــ تَودوخه ـ

**تــودوربښ** :- (تــو + د+و+ ر+ ش یـا و+ر+خ) [پ ، اِس ، ص ، مـذ ] ګـرم بـاد ، توده اېشمه ـ

**تَودوکے** :- (تو +دُو +کے ) [پ اِس ، مذ ، وا ، ج : تودُوکي (مؤ : تودُوکې ] ګرم شان ، لږ ګرم ، ترم ـ

**تَودول** :- (تو + د + و + ل ) [پ ، مص ، مت ] (۱) ګرمول ، حرارت وررسول (۲) غُصه کول ، لَمسول ، پارول ـ

**پرتودول** :- اِص ، خوک د څهٔ کار د پاره راپارَول ـ

**تَودونګ** :- (تو + د + وَ + ن +ګ ) [اَف: پ (قاموس) حمص ]و ـــــ تَودونه ـ

**تَودونـه** :- (تــو + د + و + نــه ) [پ ، حمـص ] (۱) ګرمونـه ، تودونـګ (۲) لمسونه ، پارَونه ـ

**تودُوونکــے** :- (تــو + د+ وُو + ن + کــے ) [پ ، اس ، فــاع ، مــذ ، وا ، ج: تــودُوونکي (مـؤ : تـودُوونکې)] (۱) ګرمـوُونکے ، حـرارت رسـوُونکے (۲) لمسوُونکے ، پارَوُونکے ـ

**توده** :- (تو + دَه ) [پ ، ص ، مؤ ، وا ، ج : تودې ] (۱) ګرمه (۲) سره توده ، تور توده ، شګنه ـ

**تُوده** :- (تو + ده) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] (۱) مشترک ګډ (۲) هغه ګرمې اُوبهٔ چې غل پرې داده کولے شي ـ

**تَــوده تیــږه** :- (تــو + ده + تــي + ږه یــا + ګــه ) [اَف : پ (قــاموس) اس مـؤ ] (۱) ګرمه تیږه (۲) تود کانړے د ماشومانو یوه لوبه چې د شپې ګرم کانړے اوغورزوي او بیا ئي لَټوي ـ

**تَــوده خــوا** :- (تــو + ده + خ+ وا ) [اَف : پ (قــاموس) اِس ، مـؤ وا ، ج: تــودې خواوَې ] توده سیمه ، ګرمه علاقه ـ

**تَوده سره** :- (تو + ده + س+ رَه) [پ ،اِس مؤ] زکام ، سارهٔ وهل ، یخنۍ وهل ـ

**تَوده سره وبائي** :- (توه سره +و+ با+ ئي) [پ ، (ظفر) ، اس ، مؤ ] د زکام سره تبه ، انفلوئنزا ـ

**تَــوده ســیمه** :- (تــو + ده + سِي + مــه ) [پ ، اِس ، مـؤ ، وا ، ج: تــودې سـیمې]

(۱) گرمه علاقه توده خوا ، (۲) منقطقه حاره ـ

**تودی** :- (تو + د +ی) اپ (ظفر) اس ، مؤ ]ډېر زيات ـ

**تُودی** :- (ظفر) اص ، ډېر زيات پرتپوانه ـ

**تَودېـدل** :- (تـو + دي + د + ل) اپ ، مـص لا] (۱) گرمېـدل ، تـاؤ وررسـېدل (۲) غُصه کېدل ـ

**پر تودېدل** :- اص ، په چا گرمېدل ، ميئن کېدل ـ

**تَودېدنگ** :- (تو + دي + د + ن + گ) [اَف : پ (قاموس) حمص ]او ــتودېدنه

**تَودېدنه** :- (تو + دي + د + نه) اپ ، حمص ]گرمېدنه ، تاؤ ورکېدنه ـ

**تَودېدُونکے** :- (تو + دي + دُو + ن + کے) اپ ،مف ، مذ ، وا ، ج: تودېدُونکي ( مؤ : تودېدُونکې )]گرمېدُونکے ، تاؤ ورکېدُونکے ـ

**توړ** :- (تو + ړ) [اَف : پ (قاموس )اس ، مذ ]تروټ ، تاوان ، نقصان

**توړ کول** :- (اَف) اص ، نقصان کول ، تاوان کول ـ

**کېدل** :- (اَف) اص ، نقصان کېدل ، تاوان کېدل ـ

**تور** :- (تو + ر) اپ ، ص ، مذ ،(مؤ ، وا ، ج: توره ، ج: تورې)] تور رنګ ، د سپين رنګ ضد ـ

ښـه چـې سپين د زُهـد لرې له ما ګرځي
چې و تـورو تـه نزدې شي سپين هم تور کا خوشحال خان

**سپے** :– اص (۱) تور رنګے سپے (۲) بې شرم او خراب سړے ، بد سړے

**ورته پر تندي کېدل** :- اص ، څوک په طبيعت ښهٔ نهٔ لګېدل ، څوک بدي کېدل ، څوک بد ايسېدل ـ

**پر تور سپين کول** :- (اَف) اص ، بخش کول ، معاف کول ـ

**په تور کښې سپين لګېدل** :- اص ، په ډېره کښې سپين وېښتهٔ لګېدل ، زړېدل ، بُوډا کېدل ـ

**تـوره شـپې سـپينول** :- اص ، عبـث کـار کـول ، بـې ځايـه خـواري کـول ، نـهٔ کېدُونکے کار کول ـ

**تـور** :- (تـو + ر) اپ ، ص ، مـذ ، وا ، ج: تورُونـه ](۱) تـورا ، تهمـت ، الـزام ، قصور ، ګناه (۲) ترهه ، د زړهٔ وسواس (۳) د مرغانو د نيولو يو قسم جال

ما خو ښهٔ د تورو سترګو په تور نيسي
فلک کوم له نوره خلقه کلے کور کړي حميد

**پورې ترل** :- اص ، تور پورې کول ، بدنامول ، په چا تهمت لګول ، تور پـورې وئيل ، په تورو تورول ـ

**کول** :- اص ـ و ـــــ تور پورې ترل ـ

**پورې ويل** :- اص ، و ـــــ تور پورې ترل ـ

**خوړل** :- (اَف) اص ، يرېدل ، ډارېدل ، ترهېدل ـ

**تورغوړول** :- (اَف) اص ، (۱) جال غوړول (۲) ټګي کول ـ

**ورته اچول** :- (اَف) اص ، په مکر او ټګۍ ښکار کول ـ

**په تورو تورول** :- اص ، و ــــــ تور پورې ترل ـ

**د چاپه تور کښې تلل** :- اص ، د چا په وجه بدنامېدل او زيان خوړل ـ

**ګوتې تورول او په چائې راښکل** :- (ظفر) اص ، په چا بدنامه لګول ، څوک وچ پـه وجه بدنامول ـ

**تورا** :- (تو + را) [اَف : پ (قاموس) ، ص ]تور ، تهمت ،الزام ـ

**کول** :- (اَف) اص ، تهمت لګول ، تور پورې کول ـ

**تورات** :- (تـو + را + ت) [عب ، اس ، مـذ ]توريت ، هغـه آسماني کتـاب چې کوم په موسٰی عليه السلام باندې خداے پاک نازل کړے دے ـ

چې ئې تار په تار د باد په مخ خوارهٔ کړل
د تـــورات او د انـــجـــيل واړه ورق خوشحال

**توران** :- (تو + را + ن) [اَف : پ (اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ،(مؤ ، وا: تورانه ، ج: تورانې)](۱) د قندهار تور انګور (۲) د تور جمع ببخي تور ـ

**تُوران** :- (تو + را + ن) ]اس ، معرفه ]د ايران په برېد د يوې علاقې نوم

**تورانی** :- (تو + را + ني) اپ ، اس ، مؤ ]کړېڅی ، يوه تـوره مرغـی چې اُوږده لکی لري او د بلبلې په شان وي ـ

**تورانے** :- (تو + را + نے) [اَف: پ (قاموس) ، اس ، مذ ، (مؤ : تورانې)] (۱) سودائي ، لېونے ، پاګل شان (۲) تهمت ګر ، تهمتي

**تُورانے** :- (تو + را + نَے) اپ، اس ، مذ ، وا ، ج: تُوراني (مؤ : تُورانی) ] د تُوران سره تعلق لرُونکے ، د تُوران اوسېدُونکے ـ

**تـوراو سـپين** :- (تـو + ر + او + س + پـي + ن) اپ ، ص ، مـذ ](۱) بـدرنګ او ښکلے ، بد شکله او ډونے (۲) ښهٔ او بد (۳) بې ګناه او قصور وار ـ

دا همه واړه د تورو سترګو تور دي
چې مدام مې اړوي په تور او سپين حميد

**توراپته** :- (تو + ر + اَې + ته) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ] يو قسم تـور انګـور چې لږ شان سُوروالے هم لَري ـ

**تور بختي** :- (تو + ر + بَ + خ + تي) اپ ، ص ، مؤ ]بد قسمتي ، بدبختي ـ

تور بختي د رقيب تلے نهٔ شي غر مخيه
تـور داغـونـه پـه روښانه قمر ډېر دي حمزه شنواري

**تـوربخن** :- (تـو + ر + ب + خ + ن) اپ ، ص ، مـذ (مـؤ ، وا : توربخنـه ، ج: توربخنې ] لږ شان تور ، توروالي ته نزدې ـ

**توربخي** :- (تـو + ر + ب + خـي) [اَف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ]يـو قسـم کشـيده ،يو قسم بخيه ـ

**کول** :- (اَف) اص ، يو خاص قسم کشيده کول ، بخيه کول ـ

**تُور برېښن** :- (تو + ر + ب + رې + ش يا ب + رې + خ) اپ ، اس ، ص ، مذ ] (۱) تُور ببښ ، دړکه ، ديکه ، دب دړکه ، يرونـه (۲) د تـورې برېښنـا ، د تُورې پېک (۳) لاهې شافې ـ

**توربمبر** :- (تو + ر + بَ + م + بَ + ر) اپ (ظفر) اس ، مذ ، وا ، ج: تور بمبران ]بورا ـ

**تُور ببښ** :- (تو + ر + بې + ښ) اپ (سو) اس ،ص ، مذ ]او ـــــــ تُور برېښن ـ

**تور پاڼه** :- (تو + ر + پا + ن + ړه) [اَف: پ (قـاموس) اس ، مؤ،وا ، ج: تور پاڼې] بنفشه ـ

**تـورپېکی** :- (تـو + ر + پـې + کـي) [اَف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ]د تـورپېکي مېرمن، ښکلې پېغله ـ

**تـورت** :- (تـو + ر + ت) [اَف: پ (قـاموس) اس ، مـذ (مـؤ ، وا ، تُورتـه ، ج: تُورتې]

د يـوې خبرې سړے ، د يـوې ژبـې خاوند ، د قـول پـوخ ، صاف زړے ، رښتونے ـ

**تُورت ويل** :- (اَف) اص ، صفا وېنا کول ، ابغه نبغه خبره کول ـ

**تُورت** :- (تو + ر + ت) اپ ، (ګن) ص ، مذ ]تېز ، جلت ـ

**تـور تـاوده** :- (تـو + ر + تـا + و + ده) [اَف ، پ (قـاموس) اس ، مـؤ] يـو مشـهور خوراک ، سارهٔ تاودهٔ ، شګنه ـ

**کول** :- (اَف) اص ، ساړه ، تاوده جوړول ، شګنه جوړول ـ

**تورتپ** :- (تو + ر + تَ + پ) [اپ ، ص، مذ ] (۱) توره تیارهٔ (۲) د سیلۍ او طوفان په وجه جوړه تیارهٔ ۔

د اغیارو غم زما د زړهٔ اوچت شو
که راپورته شوه نرۍ شپه توره تپه — عبدالعظیم

**جوړول**:- اص (۱)توره تیارهٔ جوړول (۲) خبره دبخوا اخوا کول (۳) غبن کول ۔

**تورتپے** :- (تو + ر + ت + پے) [اَف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تورتپي (مؤ : تورتپي)]اهغهٔ سرے چې په مخ ئې د تنکو تورتپو یا داغُونه وي ۔

**تورتک** :- (تو + ر + تَ + ک) [ اپ ، ص، مذ] (۱) تک تور ، بېخي تور ، (۲) بدنام ۔

لاس مې نهٔ خېژي له ځانه مینې پک کړم
بدنصیب رقیب حبیب وته تورتک کړم — بېدل

**تورتلب**:- (تو + ر + تَ + ل + ب) [اَف: پ (قاموس) ص ، م (مؤ ،وا: تورتلبه ، ج: تورې تلبې )]اسوې لوې ، بالکل سوے ۔

**کول** :- (اَف) اص ، تک تور سول ، بېخي سول ۔

**کېدل** :- (اَف) اص ، تک تور ، سوځېدل ، بېخي سوځېدل ۔

**تورتم** :- (تو + ر + تَ + م) [اپ ، ص، مذ] (۱) توره تیارهٔ ، ډېره تیارهٔ (۲) اَړې ګړې ، ګړبړ ۔

**تورتم کېدل** :- اص (۱) توره تیارهٔ کېدل (۲) اَړې ګړې کېدل ۔

د سپین مخ شغلې ئې بې حده ځلېږي
رڼا ورځ ئې تر ښائست پورې تور تم دے — خواجه بنګښ

**مړېدل**:- اص ، تیارهٔ ختم کېدل ، تیارهٔ لرې کېدل ۔

**په تورتم کښې قدم کښېښودل** :- اص ، په تیارهٔ کښې تلل ۔

د وصال د تمنا ډیوه په لاس کښې
ږدم د هجر په تور تم کښې قدم ورو ورو — طاهر کلاچوي

**په مخ تورتم راتلل** :- اص ، مخ ، د غم نه تک تور کېدل ، مخ تور سول

ځهٔ لره اے مېاشتې تهٔ ځپل مخ ستائې و ماته
د یار په مخ مې نور ځي ستا په مخ درومي تور تم — خوشحال خان

**تورتمې** :- (تو + ر + تَ + م + ی) [اپ (ظفر) ص ، مؤ ]اتورې بربښېدُونکې زلفې، چمکدارې زلفې ۔

**تور توت** :- (تو + ر + تو + ت) [اپ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: تور توتان] تور رنګے توت ، هغه توت چې مېوه ئې توره وي ۔

**تورتیپ** :- (تو + ر + تي + پ) [اپ ، ص، مذ] (۱) ګنه ګونه (۲) بېخي تور۔

**جوړول** :- اص (۱) ګنه ګونه جوړول ، په یو ځاے کښې ګډ وډ راجمع کېدل ، بې قاعده جمع کېدل (۲) د سیلۍ او ګرد له وجې تیارهٔ جوړېدل ۔

**تورتیلے** :- (تو + ر + تي + ي + لے) [اَف : پ (قاموس) اس ص ، مذ ، وا ، ج: تور تیلي (مؤ : تور تیلې)] (۱) تک تور سرے ، د تور ګونګټ په شان ، تور تیلي (۲) تور سوے څیز ۔

**تور جاش** :- (تو + ر + جا + ش) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ]یو بُوټے چې پاڼې ئې د نرګس په شان وي ، او چې ځناور ئې اوخوري نو خولهٔ ئې سره شي ۔

**تور ځونډے** :- (تو + ر + دزُو + ن + ډے) [اَف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تور ځونډي ]ښبخې ، ښبخه ، یو قسم بُوټے چې ډېر خوندور سابهٔ ئې وي ۔

**تورخوټے** :- (تو + ر + خ +و + ټے) [اپ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: تورخوټي ] (۱) تورکونړے ، اِندکے ، تور رنګے ، (۲) زلموټے ، ځوانۍ ته رسېدُونکے ۔

**وېش** :- (سو) اص ، د جائیداد هغه وېش چې هر پنځلس کاله پس کولے شي ، په دې کښې نوو زلمو ته خپله برخه د کلي په وېش کښې ورکولے شي ۔

**توردلے** :- (تو + ر + د + لَے) [اَف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: توردلیان ] (۱) یوه قسم توره مرغۍ چې د ښو څوکې ئې سپینې وي (۲) یو قسم شینکے (۳) د پښتو مشهورې قصې دلے شهي یوکردار ۔

**تورړی**:- (تو + ر + ړ + ی) [اَف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]یوه توره شان مرغۍ چې لکۍ ئې سپینه وي ۔

**تور زاغ** :- (تو + ر + زا + غ) [اپ ، اس ، ص ، مذ ] (۱) تور کارغهٔ (۲) رقیب ۔

دا ئې خال دے چې ئې اېښے په جبین دے
که په باغ کښې د ګلونو تور زاغ ګرځي — کامګار خټک

**تُورزن**:- (تو + ر + ز +ن ) [اپ ، اس ، ص ، مذ (مؤ ، وا: تُورزنه ، ج: تُورزنې )] (۱) تُوریالے ، زړهٔ ور ، د تورې مړنے (۲) د طنز په ډول یربېدُونکي ته هم وائي

چې له ښو ښو مړنو دې مېدان یووړ
شابس شابس د حمید فکر تورزن

**تورزن توب**:- (تورزن + تو + ب) [اپ ، ص،اس ، مذ ] تُورزن والے ، تورزن تیا ، مړانه بهادري ، زړه ور توب ، ښهٔ مېړه توب ۔

**تُورزن تیا** :- (تورزن + ت+ یا ) [اپ ، اس ، مؤ ] و--------- تُورزن توب ۔

**تُورزن والے** :- (تورزن + وا + لے ) [اپ ، اس ، مذ]و -----تُورزن توب

**تور سر**:- (تو + ر + سَ + ر) [اپ ، اس ، ص ، مذ ] (۱) چې د سر د وېښتو رنګ تور وي ، ځواني (۲) برېنډ سر ، سرتور ، چې دستار ئې په سر نهٔ وي ۔

**تور سرکه** :- (تو + ر + س + ر + که) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] کارغه ، هغه توره کپړه چې په ځهٔ لرګي باندې پاس د فصل په پټي کښې دې د پاره اَوېزانده کړه شي چې مرغان او ماشومان پرې د بنیادم ګمان کوي او فصل ته نقصان نهٔ رسوي ۔

**تور سره** :- (تو + ر + سَ +رَه) [اپ ، اس ص ، مؤ ، وا ، ج: تور سرې] تور سرے ، ښځه ، زنانه ۔

**تورسکاڼ** :- (تو + ر + س + کا + ڼ) [اَف : پ (قاموس) اس + مذ] (۱) تور رنګے ، تور بخن (۲) تور اَس ۔

**تور سورن** :- (تو + ر + سُو + ر +ن ) [اَف : پ (قاموس) اس ] تور سور بخن اَس

**تور سوے** :- (تو + ر + س + وے) [اپ ، ص، مذ ، وا ، ج: تورسوي (مؤ : توره سوې)] بالکل سوے ، د سوځېدو په وجه تک تور شوے۔

**تور ښورے** :- (تو + ر + ښو + رے ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ] یو قسم بُوټے ، ښورکے ۔

**تورغر** :- (تو + ر + غ + ر ) [اپ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: تور غرُونه ] (۱) تور رنګے غر (۲) د تکلیف کار ، د کړاؤ نه ډک کار ۔

**تورغړے** :- (تو + ر + غ + ړے ) اپ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تورغړي ] مټ ، د څنګل نه پاس حصه ۔

**تور غوجیر** :- (تو + ر + غو + جي + ر ) [اَف: پ (قاموس) اس ، مذ] یو قسم واښهٔ چې سُور ګُل لري ۔

**تورغوړ** :- (تو + ر + غ + و + ړ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ] تورتېل ، رنځُرنهٔ

**تور غوړے** :- (تو + ر + غ + و + ړے ) [اَف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تور غوړي (مؤ : تور غوړې)] (۱) پشي پړانګ ، یو ځناور چې د سپي نه

ورکوټې او د پيشو نه غټېږي ، غوږونه ئې تور او رنګ ئې توربخن وي (۲) کم عقل بنيادم.

**تور غونډان** :- (تو + ر + غ + و + ن + ډا + ن ) [اَف : پ (قاموس) ، اِس مذ ] يؤ قسم انګور چې رنګ ئې تور وي.

**تـورک** :- (ت + و + رَ + ک ) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج: تورکوُنـه ]د ټوپک سپرنګ.

**تور کډهل** :- (تـو + ر + ک + ډ + ه + ل ) [اَف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ] تورکوهے ، تور زندان.

**تور کراړو** :- (تو + ر + ک + را + ړو ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ] ګونګټ.

**تـور کـړے** :- (تـو + ر + ک + ړے) [پ ، ص، مـذ ، وا ، ج: تـورکړي (مـؤ ، وا: توره کړے ، ج: تورې کړې ] (۱) تور رنګ ورکړے (۲) بدنام کړے.

**تورکښ** :- (تو + ر + ک + ښ) [اَف: پ (قـاموس) اِس ، مذ ]ويسـتلې تُوره، په زرۀ زمانه کښې به ئې جګړېتوب يا لښکريتوب ته ويل

**تـور کښې** :- (تـو + ر + ک + ن + ړي) [اَف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ] تورکُونے ، تُور لَوے ، تورکي ، د لُوګي خيرے.

**تورکورے** :- (تو + ر + ک + و + رے ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ] يو اَزغن بُـوټے چـې جـرړې ئـې زيـړ رنګـے وي او د خـوږ انـدام د ټکـور د پـاره استعمالېږي.

**تورکونے** :- (تو + ر + کو + نے) [پ ، اِس ص ، مـذ ، وا ، ج: تورکوني] تور خوټے ، اندکے ، تور رنګے.

**تورګونے** :- (تو + ر + ګُو + نے) [پ (ګن) اِس ، مذ ]تور لَوے ، تور کښي.

**تورکه** :- (تو + ر + که ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: تُورکې] شمتوره ، يو قسم مرغۍ.

**تورکي** :- (تو + ر + کي ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ] و ـــ تور کښي.

**تورکے** :- (تو + ر + کے ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج: تـورکي] (۱) حرف (۲) تور شان ، د تور اسم تصغير (۳) هغه د کپړې نه جوړه کړې توره شـان مرغـۍ چـې د شـمتورو د نيولـو د پـاره پـه ونـه کښـې تړلـې کېږي (۴) رنځ وهلے تور شان د غنمو وږے.

**تـور ګـاړ** :- (تـو + ر + ګـا + ړ) [اَف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ] (۱) اشـخار (۲) هغـه کاڼيزه علاقه چې تور کاڼې پکښې وي.

**تـور ګـردے** :- (تـو + ر + ګ + ر + دَے ) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج: تور ګردي ، د ريښمو د کشيدې يو قسم ].

**تورګـل** :- (تـو + ر + ګ + ل ) [پ ، اِس ص ، مـذ ]د تـور رنـګ ګـل (۱) د پښتنو زلمو نوم.

**تورلال** :- (تو + ر + لا + ل) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ] يو قسم تور انګور.

**تور لحد** :- (تو + ر + ل + ح + د) [پ ، اِس ، مذ ]قبر ، ګور.

د مجلس ياران بنديان د تور لحد شول
وار پـه وار زمـونږه هم ورپسې تلۀ دي — خواجه محمد بنګښ

**کښې کېښېودل** :- اِس ، په قبر کښې کښېښودل ، ښخول ، دفن کول.

چې مې کېښږدي يک تنها په تور لحد کښې
بـې تـا نـۀ لـرم هـمـدم زمـا ساجبه !

**تورلشے** :- (تو + ر + ل + شے) [پ (ظفر) اِس ، مذ ، وا ، ج: تورلشي ] يو قسم غنم چې د وږي لشه ئې توره وي ، تورلشي.

**تور لشي** :- (تو + ر + ل + شي ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ]و ـــ تورلشے.

**تورلمے** :- (تو + ر + ل + مے) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ] (۱) غسـه ، يؤ ځناور چې د قبر نه نوے مرده راوُباسي ګورکښ(۲) خپسه.

**تورزلمے زېـړن** :- (تـو + ر + ل + مـے + ز + ب + ړ + ن) [اَف: پ (قـاموس) اِس ، مذ ]هغه اس چې ګوډې ئې تورې وي.

**تورلېمۀ** :- (تو + ر + لې + مۀ) [پ اِس ص ، مذ ]تورې سترګې.

**تورم** :- (تو + ر + م ) [پ ، اِس ، مذ، وا ، ج: تُورمونه ] تُرم ، تورۍ ، سُرنا.

**تورمانښام** :- (تـو + ر + مـا + شـا + م يـا مـا + ښـا + م) [پ ، اِس، مـذ] (۱) تيـارۀ مابنام (۲) اَړې ګړې.

**تورمخکه** :- (تـو + ر + مُ + خ + که ) [اَف: پ (قـاموس) اِس ، مـؤ] اللّهـو، شين غوښتل ، هرکله چې په شـپږو شـپږو بـاران ورېـدل شروع شي نو د کلي ماشومان خپل مخونه تور کړي ، کور په کور ګرځي او خدا ے پاک ته زاري کوي چې باران وُدرېږي.

**تـورمخې** :- (تـو + ر + م + خـې) [پ ، اِس ص ، مـذ ، وا ، ج: تـورمخي (مـؤ : تورمخې)] (۱) چې مخ ئې تور وي ، د تور مخ خاوند ، سخا (۲) ګناه ګار (۳) شرمنده (۴) غماز (۵) شيطان ورانکارے.

**کول** :- اِص ، شرمنده کول ، شرمول.

**تورن** :- (تو + ر + ن ) [اَف : پ (قاموس) ص]تور ، تورشان.

**تـورنګړے** :- (تـو + ر + ن + ګ + ړے ) [پ ، اِس ص ، مـذ ، وا ، ج: تـورنګړي (مؤ : تور نګړې )]تور ، توررنګړے.

**تورواله** :- (تو + ر + وا + لے ) [پ ، ص، مذ] (۱) تور رنګ ، درنګ تورېدنه (۲) بدنامي ، تور

**توروانجه** :- (تو + ر + وا + ن + جه ) [اَف: پ (قاموس) اِس ، مؤ] توره دانه چې د ډوډۍ پخولو نه وراندې د خوند او اثر ښۀ کولو د پاره پر اچولے شي.

**تورول** :- (تو + ر + و + ل) [اَف: پ (قاموس) مص مت ]تووول ، ترول ، ترېول ، يرول ، ډاړول.

**تـورول** :- (تـو + ر + و + ل) [پ ، مـص مـت ] (۱) تورکـول ، تـور رنـګ ورکـول (۲) تور پورې کول ، بدنامول.

تۀ چې سترګې توروې خود به پوهېږې
لـونګين چې ښوروې خود بـه پوهېږې — خوشحال خان

**د کتاب مخونه تورول** :- اِص ، کتاب ليکل ، په پاڼو پاڼو ليکل ، زيات ليک کول.

**سترګې تورول** :- اِص (۱) په سترګو کښې رانجۀ اچول ، رانجۀ پـه سـترګو پورې کول.

**عملنامه تورول** :- اِص ، ګناه کول ،بدکارونه کول.

**کاغذ تورول** :- اِص (۱) خط ليکل ، ليک کول (۲) څۀ بې مطلبه ليک کول

**مخ تـورول** :- اِص (۱) بـداخلاقي کـول ، بـدفعلي کـول ، بـدکار کـول ، ځـان شرمول (۲) بې لوظي کول.

**تورولے** :- (تو + ر + وَ + لے) [اَف: پ (قاموس) مف ، مـذ ، وا ، ج: تـورولي ، (مؤ : تورولې)]يَرولے ، ډارکړے ، په منډه اخستے.

**تورونګ** :- (تو + ر + و+ن + ګ ) [اَف : پ (قاموس) حمص ]و ـــــ تورونه

**تورونه** :- (تـو + ر + و + نـه) [پ ، حمص ] (۱) تورونـګ ، تورکونـه ، تـور رنـګ ورکونه (۲) يرونه ډارونه (۳) بدنام کونه.

**تورووُنکے** :- (تـو + ر + وُو + ن + کے ) [پ ، اِس ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج: تـوروُونکي (مـؤ : تـوروُونکې)] (۱) تـور رنـګ ورکـوُونکے (۲) بـدناموُونکے ،

شرموُونکے (۳) یروُونکے ، ډاروُونکے ۔

**تُوره** :- (تو + ره) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تُورې ] (۱) یوه وسله چې د اوسپنې یا فولادو نه جوړه وي ، یو طرف ئې تېرهٔ وي او پخوا زمانه کښې په جنګ کښې استعمالېده (۲) زړهٔ ورتیا ، بهادري، مړیتوب ۔

**ایستل** :- اص (۱) تُوره د تېکې نه بهرکول ، تُوره کښل ، تُوره وکاږل (۲) ګذار ته تیارېدل (۳) جنګ ته ملاتړل ۔

**بربنډول** :- اص (۱) تُوره پنې کول یا چنې کول ، تُوره پرقول () د خټکو د ګډا په وخت توره ایستل (۲) د ګټې په وخت د خوشحالۍ د اظهار په ډول تُوره ایستل (۳) د تورو په جنګ کښې میدان ته ورننوتل او بهادري ښکاره کول

**پنې کول** :- (ب، خ) اص ، و - تُوره بربنډول ۔

**تېره کول** :- اص (۱) د تُورې دار صیقل کول (۲) جنګ ته تیاري کول

**تُوره چاړهٔ کول** :- اص ، جنګ ته متې نغښتل ۔

کـــله ډم لاس پـــه سرګرځي
ګاه سپاهي توره چاړهٔکړ ئې حمید

**چلول** :- اص ، تُوره وهل ، د تُورې ګذارُونه کول ۔

**درلودل** :- اص (۱) تُوره لرل ، په لاس کښې د تُورې وسله لرل (۲) مړانه او تکړه توب لرل د تُورې ښکاره کولو طاقت لرل ۔

**ډال اچول** :- اص (۱) پړه یا ماتې منل (۲) حوصله بائلل ، د یو کار نه په شا کېدل

**زنګېدل** :- اص (۱) د تُورې زنګ اخستل (۲) د جنګ نه لاس اخستل ، مړانه او باتُورې پربښودل ۔

**سرهٔ کول** :- اص ، تُوره د چا په وینو ککړول ، په تُوره رسا ګذارکول۔

**شنډول** :- (ب، خ) اص ، (۱) تُوره بربنډول ، تُوره په لاس کښې اړول را اړول (۲) د جنګ په وخت د تورې ګذارُونه کول ۔

**کښل** :- اص ، و ـــــ تُوره ایستل ۔

**کول** :- اص ، مړانه کول ، بهادري ښکاره کول ، لوے کار سرته رسول ۔

**کښېښول** :- اص (۱) تُوره په مزکه ایښودل ، تُوره د لاس نه لرې کول (۲) ماتې منل ، خپله پړه تسلیم کول (۳) دښمن ته سر ټیټول ۔

**لاس ته کول** :- اص ، تُوره په لاس کښې اخستل ، جنګ ته تیارېدل ، د جنګ د پاره ملاتړل ۔

**لښته کول** :- (اَف) اص، د دښمن په سر تُوره راخلاصول، په چا د تورې ګذارونه کول ۔

**لګـول** :- (ب، خ) اص ، د وړوکـي او تـازه پـیـدا شـوي ماشـوم سـرته تُـوره کښېښول ، زنانه څلوېښتو ورځو پورې د ماشوم سرته په دې عقیده تُوره کښېږدي چې دا ماشوم به د بلا نه بچ وي او د مړانې خوي به پکښې پیدا شي ۔

**وُکاږل** :- اص ، و ــــــ تُوره ایستل ۔

لېچې څهٔ سره غړې توروه وکاږي
که د خوارو په وژو په آهنګ نهٔ ده خوشحال خان

**تُوره وهل** :- اص ، مړانه کول ، جنګ کول ۔

**باد په تُوره وهل** :- اص (۱) نهٔ کېدُونکے کار کول ، هسې تش بُوس بادول (۲) هر چاته د جنګ د پاره خولهٔاچول (۳) زړهٔ ورکېدل ،(۴) بهادري او مړانه ښکاره کول ۔

**په تُورو کېدل** :- اص ، یو بل ته توره ویستل ، د یو بل سره جنګ ته مخامخ کېدل او تُورې راویستل ۔

**د تُورو باران پرې جوړول** :- اص ، څوک په تُورو ډېر زیات وهل ۔

**له تُورو تېرول** :- اص ، حلالول ، مړول ۔

**توره** :- (تو + رَه) [پ ، اس ، مؤ ] (۱) د تور مؤنث صیغه ، (۲) پېسه (۳) ناکرلې مزکه (۴) د کسب ګر د خدمت حق ، مزد ماوُود ، فصلانه اولګ (۵) توره اوربخ ، ګُوره وربخ ۔

پـــه تـــوره د تورو سترګو چې تور نهٔ وه
ساده ساد بندکه په زلفو کښې چورچا بېدل

**توره** :- (تو + ره) [پ ، اس ، مؤ ] (۱) په یوناني طب کښې د سودائي مادې نوم (۲) د قامه لښکر غونډه (۳) دښمني (۴) د ګاونډیانو یا همسایه ګانو د وادهٔ په موقع د خان یا ملک د هغوي نه څهٔ پېسې اخستل او په بدل کښې ناوې ته څادر یا جامې جوړول (۵) تهمت ، بدنامي ۔

**درلودل** :- اص ، په قام کښې اثر او عزت لرل ، د لښکر او پرې جنبې خاوند کېدل

**لرل** :- اص ، پره جنبه لرل ، ګُوندي لرل ۔

چې ګټل خورول بخښل کا خان هغه
چـــې تـــوره لـــري د تـورې خان هغه خوشحال خان

**تـوره انـا** :- (تـو + ره + ا + نـا) [اَف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ]تورانګه برېتیـه ، تورانۍ ، ډانګ لکۍ ، د کارغهٔ په شان یوه توره مرغۍ چې لکۍ ئې لرهٔ شان اُوږده وي ۔

**توره اوربځ** :- (تو + ره + او + رې +دز) [پ ، اس ص ، مؤ ] توره وربخ ، تورتم ، توره تیارهٔ ، توره بډه ۔

**تـوره بـډه** :- (تـو + ره + ب + ډه) [اَف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ]و ـــــ تـوره اوربځ ۔

**توره بلا** :- (تو + ره + ب + لا) [پ ، اس ص ، مؤ ، وا ، ج: تورې بلاګانې ] غټه مُصیبت ، لوے آفت ، بده بلا ۔

**توره پاڼه** :- (تو + ره + پا + ن + ړه) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ ]بنفشه ، تور پاڼه

**تـوره پـاڼې** :- (تـو + ره + پـا + ن + ړې) [اَف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ] یـو بـوټے دے چې د شولو د بُزغلي سره په مزکه کښې ښخولے شي ۔

**توره تبه** :- (تو + ره + تَ+ به) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] میعادي تبه ۔

**په لګېدل** :- (اَف) اص په میعاي تبه پربوتل ، تورې تبې نیول ۔

**تورې تبې نیول** :- (اَف) اص ، و ــــ توره تبه په لګېدل ۔

**توره تبۍ** :- (تو + ره + تَ + بۍ) [پ ، اس ص ، مؤ ] (۱) توره تړه ، توره کنډهٔ ، توره تېغنه (۲) رنده ۔

عاشقي منافقي شي په هنُر
آئینه توره تبۍ شي په جوهر حمید

**توره تتۍ** :- (تو + ره + تَ+ تۍ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] بلبله ، بلبل ۔

**توره تیارهٔ** :- (تو + ره + تَ+ یا + ره) [پ ، اس ص ، مؤ ] (۱) تورتم ، تپه تیارهٔ (۲) اړې ګړې ۔

**تـــوره تېښـــته** :- (تـــو + ره + تـــې + ښ + تـــه) [اَف : پ (قـــاموس) اس ، مؤ]سخته کرکه

**کول** :- (اَف) اص ، سخته کرکه کول ۔

**کېدل** :- (اَف) اص ، سخته کرکه کېدل ۔

**توره ټوخله** :- (تو + ره + ټو + خ + له) [پ ، اس ، مذ ] توره غاړه ، ټوخلي ، بونګي ټوخې ، لويه ټوخې.

**توره څله** :- (تو + ره + تس + له) [پ ، اس ، مؤ ]د ژمي څپله ، سخته يخني.

**توره څوکه** :- (تو + ره + تسو + که) [پ ، اس ، مؤ ]د غرۀ تور سر ، د غرۀ پاسنې سر.

**توره دربله** :- (تو + ره + د + ر + ب + له) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] توره دربه، توره تيارۀ ، تپه تيارۀ ، تکه توره تيارۀ.

**توره دربه** :- (تو +ره +د +ر + به) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ ]و- توره دربله.

**توره دړه** :- (تو + ره + د + ړه) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ ]توره تخته ، تخته سياه

**توره شپه** :- (تو + ره + ش + په) [پ ، اس ، ص ، مؤ ] (۱) تيارۀ شپه ، تکه توره شپه (۲) اَړې ګړې ، تورتم (۳) د غم شپه ، د انتظار شپه.

پــه کار مــې شوه ژړا د انــتــظار پــه توره شپه
روښان مې نمر د بخت شو راغلو يار په توره شپه حمزه شنواري

**توره شمه** :- (تو + ره + ش+ مه) [اَف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]و ـــــ تاګۍ.

**سپينول** :- (اَف) اص ، نۀ کېدُونکي کار ته لاس اچول.

**توره غاړه** :- (تو + ره + غا + ړه) [پ ، اس ، مؤ ] و ـــــ توره ټوخله

**توري غاړې نيول** :- اص ، ټوخلي ، لګېدل ، بانګي ټوخي نيول.

**توره غُنډۍ** :- (تو + ره + غ + ن + ډۍ) [پ ، اس ، ص، مؤ ] توره ډبره ، تور رنګې غرګې.

**توره کجله** :- (تو + ره + ک + ج + له) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] توره خړه چرچڼه.

**تــوره لښــته** :- (تــو + ره + ل + ښ + تــه) [اَف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ] د آلـو بخارې په شان يوه مېوه داره وُنه.

**توره مرغه** :- (تو + ره + م + ر + غه) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] وژه ، ځوژه ، يو قسم وابنۀ.

**توره وښکه** :- (تو + ره + و + تس + که) [اَف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: توري وښکې ] (۱) د ماشومانو يوه لوبه (۲) تور مويځ ، توري وښکې.

**تــوره وښکۍ** :- (تــو + ره + و + تس + کي ) [اَف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ]توره هريړه

**تورۍ** :- (تو + ري ) [پ ، اس ، مؤ ]يوه سبزي چې د کدو نه ورکوټې وي ، او د اوړي په موسم کښې کېږي.

که د زړۀ سترګې بينا کړې د ګمان اوره فنا کړې
دا مــعــني مــثال لينده وي کسي توري له قلمه مرزا انصاري

**تــورے** :- (تــو + رے ) [پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: تـوري ] (۱) ټکے ، حـرف (۲) د اينې يا ځيګر سره نژدې د لړمون يوه حصه.

**لوښېدل** :- اص ، د توري په مرض اخته کېدل ، تورے غټېدل ، اکثر دا د مني د تبې نه پس سرې ته لګي.

**پـه تــورو پوهېــدل** :- اص (۱) لـيـک لوست زده کـول ، د علم خاوند کـېـدل (۲) حقيقت ته رسېدل.

**په تورو ويل** :- اص ، په هجو لوستل ، په ټکو ويل ، توري په توري ويل.

**توري په توري ويل** :- اص (۱) په تورو ويـل (۲) ډېر پـه ګرانه ويـل ، ټکي په ټکي ويل.

**تورے** :- (تو + رَے ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: توريان (مؤ ، وا : تورۍ ، ج: تورياني )] (۱) تور خرمنے ، تور رنګے (۲) د تور اسم تصغير (۳) د پښتنو يوه قبيله.

**توري سپينې کول** :- (اَف) اص (۱) تور او سپين کول (۲) څۀ خبره فيصله کول (۳) صفت زاري کول.

**تــوري** :- (ت + و + ري ) [اَف : پ (قــاموس) اس ، مــذ ، ج ] کــډه ، د کورسامان.

**انيستل** :- (اَف) اص (۱) کډه بادول ، د کورسامان لېږدول (۲) د يو ځاے نه کوچ کول ، په سفر روانېدل.

**توري وربارول** :- (اَف) اص چاته کډه ور په سر کول ، د ځاے نه شړل ، د کور يا کلي نه ويستل.

**تورے** :- (ت + و + رَے ) [اَف: پ (قاموس) اس ، مذ ]انډېرے ، پُوزے.

**تورے** :- (تو +رَے ) [پ (سو) اس ، مذ ] د شېخ ملي د دفتر د وېش آخري اکائي، دا د روپۍ شلېرويشتمه برخه وي.

**تُـورے** :- (تـو + رَے ) [اَف: پ (قـاموس) اس صـوا کُوري ، د سپي د شړلو آواز.

**توريـالے** :- (تـو + ر+يـا + لے) [پ ، س ص ، مـذ وا ، ج: تُوريـالي (مـؤ ، وا: توريالۍ ، ج: توريالياني )] مړنے ، بهادر ، تورزن ، د تُورې ، مېړنے.

**توريانۍ** :- (تو + ر+ يا+ ن + ړي ) [پ ، اس ، مؤ ]توتکرې ، خرڅکه ، د بارانۀ مرغۍ.

**توري اوبۀ** :- (تو + رې + أو+ بۀ) [پ ، اس ، مؤ ]کاري درياب ، په سمندر پورې د انډمان جزيرې چې انګريزانو به قيديان پکښې ساتل.

**توربت** :- (تو + رِ + ت ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ]و ـــــــ تروبت.

**تَوربت**:- (تو + رِ + ت ) [عب، اس ، مذ ]تورات.

چې مې ښۀ توربت د خپلې چارې ځير کړو
ځان مـې واړه حـبـطه پـه خپل تدبير کړو خوشحال

**تُوري پتي** :- (تو + رِي + تَـ پي ) [اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ] تُوري ترپي ، زاري ، ژړا انګولا.

**کول** :- (اَف) اص ، منت زاري کول ،ژړا انګولا کول.

**توري تربي** :- (تو + رِي + تَ + ر + بي ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و ـــــــــ تُوري پتي.

**تَوريتون** :- (تو + ري + تُو + ن ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ]و ــ تروبتون.

**تَوريتي**:- (تو + رِ + تي ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: توربتيان ] تروبتي ، د نجوم د علم ماهر.

يو توربتي نشته چې خپل حال ورته معلوم کړم
کــلــه بــه زما د بــخــت د ســتوري لااثر شي خوشحال خان

**تـوري تيـارې** :- (تـو + رِ + ت + يـا + رې) [پ ، اس ، ص ، مـؤ ج ، وا: تـوره تياره ] (۱) ډېرې تيارې ، تورتيپ (۲) بدنصيبي ، بدقسمتي.

**توري خاورې** :- (تو + رِ + خا+ و + رې) [پ ، اس ، ص ، مؤ ] (۱) توري ختې (۲) قبر ، ګور.

**پـه خولۀ کېـدل** :- اص (۱) محروم کـېـدل ، تـش لاس پـاتې کـېـدل (۲) مړکېدل، د دنيا نه کوچ کول.

**کېدل**:- اص ، مړ کېدل ، د دنيا نه کوچ کول.

**تورېدل** :- (تو + رې + د + ل ) [اپ ، مص لا ] (۱) تور رنګ ورکولے کېدل ، رنګ تورکېدل (۲) بدنامېدل ، تور پورې کېدل (۳) کرکه پېدا کېدل (۴) شرمنده کېدل ـ

کـرم ګـناه شوې بـې مینې نور له ما
چې خاطر د جان بې شان شۀ تور له ما بېدل

**زړۀ تورېدل** :- اص ، په زړۀ کښې کرکه پېدا کېدل ، څوک په ځان بدېدل ـ

**مخ تورېدل** :- اص (۱) بدنامېدل (۲) شرمنده کېدل ـ

چې په جانان پسې اونۀ مرم
ځکه مې مخ ویار ته تور شو خواجه محمد بنګښ

**ملک تورېدل** :- (ګن )اص ، په یو ځاے کښې د خلقو ډېره ګڼه ګوڼه جوړېدل ، مچ مېږې کېدل ـ

**تورېدل** :- (تو + رې+ د + ل ) [اَف : پ ( قاموس ) مص لا ] ترهېدل، ډارېدل ، یرېدل ـ

**تورېدنګ** :- (تو + رې + د + ل) [اَف : پ ( قاموس) حمص ]و ـــــــ تورېدنه ـ

**تورېدنــه** :- (تــو + رې + د + نــه ) [اپ ، حمــص ] (۱) تورېــدنګ ، تورېــدۀ ، تورکېدنه (۲) شرمېدنه ، بدنامېدنه (۳) ترهېدنه ، ډارېدنه

**تورېدُونکے** :- (تو + رے + دُو + ن + کے ) [اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: تورېدُونکي (مؤ : تورېدُونکې )] (۱) تور رنګ درکېدُونکے ، رنګ تورېدُونکے (۲) بدنامېدُونکے ، شرمند کېدونکے ، (۳) ترهېدُونکے ، ډارېدُونکے ـ

**تورېدۀ** :- (تو + رے + دہ ) [اپ ، حمص ] ، و ـــــــتورېدنه ـ

**توریزے** :- (تو + رې + زے ) [اَف: پ ( قاموس) اِس ، مذ ]یوقسم مارغۀ چې لکۍ ئې ورکوټې وي ـ

**تورې سترګې** :- (تو + رې + س + ت + ر +ګې ) [اِپ ، اِس ص ، مؤ ] (۱) هغه سترګې چې ککې ئې تور وي (۲) ښکلې سترګې ـ

چې مې اولېدې دا تورې سترګې ستا
زۀ به نۀ کړم هېرې نورې سترګې ستا خوشحال

**تورې نورې** :- (تو + رې + نو+ رې ) [اپ ، اِس ، معر ] تکلیفونه ، کړاؤنـه ، قسم قسم مُصیبتونه ـ

**کېدل** :- اِص ، تکلیف رسېدل ، په مُصیبت کښې ګېرېدل ـ

لاشهرت دې شو زیاتې په سپین روبې کښې
کـه پـه ماشـوې تـورې نـورې خانـدې ولې حمزه شنواري

**تورې وڅکے** :- (تو + رې + و + تس + کے ) [اپ ، اِس ، ص ، مؤ ] د قندهار د سیمې تور مویځ یا کشمش ـ

**تـوري وران** :- (تـو + ري + و + را+ ن ) [اپ ، (سـو ) اِس ، مـذ ]د مزکې د دفتـر آخري اکائي خرڅووُنکے ـ

**تور** :- (تو + ړ ) [اپ (ب ، خ ، ګن ) اس ، مذ ]تر آخر ـ

**تُوَړ شک** :- (تو + ړ + شَ +ک ) [اَف : پ (قاموس ) اِس ، مذ ]پېغور ـ

**تُـوړے** :-(تـو + ړَے ) [اَف :پ (قـاموس ) اِس ، مـذ ،وا ، ج: تُـوړي ، (مـؤ ، وا: تورۍ ، ج: توړیانې )]ترتړے چاړا ـ

**تورۍ** :- (تو + ړي) [اَف : پ (قـاموس ) اِس ، مؤ ، وا ، ج: توړیـانې ] (۱) ترور (۲) مشره ښځه ـ

**تورۍ زے** :- (تو + ړي + زَے ) [اَف: پ (قـاموس ) اِس ، مذ وا ، ج: تـوړ زي ، تورې زیان ، (مؤ ، وا: تورۍ زۍ ، ج: تورۍ زیانې )]د ترور زوے ـ

**تُوزن** :-(تو + ز+ ن ) [اَف پ (قاموس ) اِس ، مذ ( مؤ ، وا : تُوزنه ،ج: تُوزنې )] (۱) تېزن ، تېزمار (۲) یرېدُونکے ، ډارن ، یرندُونکے ـ

**تُوزنه هیله** :- (تو + ز+ نه + هي + له ) [اَف : پ (قاموس ) اِس ص ، مؤ ] بې ځایه طمعه ـ

**کول** :- (اَف) اِص ، بې ځایه طمع کول ـ

**تُـوزے** :- (تـو + زے ) [اَف: پ (قـاموس ) اِس ، مـذ ، وا ، ج: تُـوزي ] (۱) یـوه غُنډه یا لویه کپړه چې د کېږدۍ په سر ئې ګنډي (۲) یوه خزنده یا حشره چې د اُوبو په سر ګرځي چې پښې او لشه ئې اُوږدۀ وي ، کُوني کبر ـ

**تُوژنه** :- (تو + ژَ + نـه ) [اَف : پ (قـاموس ) اِس ، مـؤ ، وا ، ج: تُـوژنې ] یو قسم وابښۀ

**توږل** :- (تو + ژ+ ل یا ګ + ل ) [اپ ، مص مت ] (۱)تراشـل ، تـوژل (۲)مښـل ، لګول

د تن غوښې مې توږي قصاب د سترګو
چـې مـې هـډ ږدي د ښو ګذار ته یشه بېدل

هم مې بې حسابه پورې کړه په سترګو
د رنجو په شان مې بیا له سترګو توږه خوشحال

**توږلے** :- (تـو + ژ+ لـے + یـا ګَ+ لـے ) [اپ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: تـوږلي ، (مـؤ : توږلې )] تراشلے ، توژلے ـ

**توږلے** :- (تـو + ژَ+ لـے یـا ګ+ لـے ) [ اَف : پ (قـاموس ) اِس ، مـؤ ، وا ، ج: توږلي ]ټُوټنګے ، پترکے ، بُوره ـ

**توږند** :- (تو + ژ+ ن + د یا ګ + ن + د ) [اَف : پ (قـاموس ) اِس ، مذ (مؤ ، وا: توږنده ، ج: توږندے )]خراد ، هغه آله چې لرګے پرې هواروي او تراشي ـ

**توږندے** :- (تو + ژ+ ن + دے یا ګ + ن +دے ) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: توږندي ]رنده ، توږے ـ

**توږنګ** :- (تو + ژ+ ن + ګ یا ګ + ن + ګ ) [اَف : پ (قاموس ) حمص ] و ـــــــ توږنه ـ

**توږنه** :- (تو + ژ + نه یا ګ +نه ) [اپ ، حمص ]توږنګ ، تراشنه ـ

**تــوږون** :- (تــو + ژُو + ن یــا ګــو + ن ) [اَف : پ (قــاموس ) اِس ، مـذ ] تـراش ، سُولونه ـ

**توږوُنکے** :- (تو + ژُو+ ن + کے یـا ګـو+ ن + کے ) [اپ ، اِس ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج: توږوُنکي (مؤ : توږوُنکې )تراشُونکے ـ

**توږُونے** :- (تو + ژُو+ نے + یا ګـو + نے ) [اَف: پ (قاموس ) اِس ، مـذ ، وا ، ج: توږوني ]ګل تراش ـ

**توږۍ** :- (تو + شي یا ګي ) [اَف: پ (قاموس ) اِس ، مؤ ]رنده ، توږندے ـ

**توس** :- (تو + س ) [اَف : پ (قاموس ) اِس ، مذ ]چُوس ، د سپي بوي اخستل

**توس** :- (تو + س ) [اَف : پ (قـاموس ، اِس ، مذ ] (۱) زیاتـه تنـده (۲) ګرمـي ، تاؤ ، توش ـ

**تــوس**:- (تـو + س ) [اپ ، اَنـګ ، ټوسـټ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: توسُـونه ] د ډبـل روټۍ یوه ټکړه ـ

**توسن** :- (تو + سَ + ن ) [افا ، اس ، مذ ]سرکش اَس ـ

په توسن د ناز چې ناز له نازه سور شه
د پــرهــېز پــه ملک یو غله په هنر لاړ بېدل

**توسن** :- (تو + سَ + ن ) [اَف : پ (قاموس ) اِس ، مذ ]وجه ، سبب ـ

**تُوســن** :- (تــو + س+ ن) [اَف : پ (قــاموس ) اِس ، مـذ ] (۱) بـوي مـار سـپے ،

چُوسناک سپے ، چوسکن (۲) ورېسترګې سړے ، تُوسند ، تُوسندک ـ

**توسند** :- (تو + س + ن + د) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، (مؤ ، وا : تُوسـنده ، ج : تُوسندیے) ]ـ و ـــــ تُوسن ـ

**کېدل** :- (اَف) اِص ، ورېسترګې کېدل ، چوسکن کېدل ، حرص زیاتېدل ـ

**توسند** :- (تو + س + ن + د) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مذ (مؤ ، وا : توسنده ، ج : توسند ے)] (۱) د تند ے او ګرمۍ نه سوے اَلوے (۲) وچه مېره ، هغه ځاے چې ډېر ګرم وي او اوبۀ پکښې نۀ وي ـ

**کېدل** :- (اَف) اِص د تند ے او ګرمي نه سوے الوے کېدل ، زیات ترېې کېدل ، ګرمۍ اخستل ـ

**توسند توب** :- (تو + س + ن + د + تو + ب) [اَف : پ (قاموس) اِس مذ ] ګرمېدنه ، تودېدنه ، د ګرمۍ نه سونه ـ

**تُوســندک** :- (تـو + س + ن + د +ک) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ (مـؤ ، وا : تُوسندکه ، ج : تُوسندکې)] وــــــ تُوسن ـ

**توسن والے** :- (تو + س + ن + وا + لے) [اَف : پ (قـاموس) ، اِس ، مذ ] زیاتـه ګرمي ، ډېر تاؤ ـ

**توسول** :- (تو + س + و + ل) [اَف : پ (قاموس) مص مت ] یو څیز تـه د چا ډېره مینه او خواهش پیدا کول خو نه ئې ورکول ، ترسول ـ

**شیدې توسول** :- (اَف) اِص ، د غـوا د لوشلو پـه وخت پـۀ پـاس خېژول ، د غـوا غولانځ تېنګول او پېۀ نه پرېښول ، د غوا نۀ مال کېدل ـ

**توسولے** :- (تو + س + وَ + لے) [اَف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : توسـولي (مؤ : توسولې)]څۀ څیز ته څوک ترې سولے ، چُوسکولے

**تَوسونک** :- (تو + س + و + ن + ګ) [اَف : پ (قاموس) حمص ] و- تَوسونه ـ

**توسونه** :- (تو + س + و + نه) [اَف : پ (قـاموس) حـمص ] توسـونګ ، ترسـونه ، چُوسکونه ، څۀ څیز ته د چا خواهش پیدا کونه او نه ئې ورکونه ـ

**تَوسوُونکے** :- (تـو + س + وُو + ن + کے) [اَف : پ (قـاموس) اِس فـاع ، مذ ، وا ، ج : توسُوونکي (مؤ : توسُوونکې )ترسُوونکے ، چُوسکوُونکے ، د چا څۀ څیز ته خواهش پیدا کوُونکے او بیا نۀ ورکوونکے ـ

**توسه** :- (تو + سه) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ]سبب ، ذریعه ـ

**توسېدل** :- (تـو + سې + د + ل) [اَف : پ (قـاموس) مـص لا ] ترسـېدل ، یـو څیـز ته لېواله کېدل ، چُوسکېدل ـ

**شېدې توسېدل** :- (اَف) اِص ، د غواپېۀ پورته خېژول ، د غوا نۀ مال کېدل ـ

**غـنم توسـېدل** :- (اَف) اِص ، د وچوبې یـا تندې لـه کبلـه نـوي راټوکېدلي غـنم زېړېدل

**تَوسېدلے** :- (تو + سے + دَ + لے) [اَف : پ (قاموس) مف ، مذ وا ، ج : توسـېدلي ، مـؤ : توسـېدلې)] (۱) ترسـېدلے ، چَوسـکېدلے (۲) د وچـوبې لـه کبلـه نـوي راټوکېدلي غنم زېړ شوي (۳) د غوا پېۀ پورته خېژولے ـ

**تَوسېدنګ** :- (تو + سې + دَ + ن + ګ) [اَف : پ (قاموس) حمص ] و- تَوسېدنه

**تَوسـېدنه** :- (تـو + سـې + د + نـه) [اَف : پ (قـاموس) حـمص ] (۱)توسـېدنګ ، ترسېدنه ، چُوسکېدنه (۲) د وچوبې لـه کبلـه د نـوي راټوکېدلي غنمـو زېړېدنه ، (۳) د غوا پېۀ پورته خېژونه ـ

**تَوسېدُونکے** :- (تو +سې + دُو + ن +کے) [اَف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : توسېدُونکي (مؤ : توسېدُونکې )ترسېدُونکے ، چُوسکېدُونکے ـ

**توسـیع** :- (تـو + سـي + ع) [ع ، اِس (۱) فراخـي ، پلـن والـے ، (۲) زیـاتوالے ، زیاتوب]

**توش** :- (تو + ش) [پ (ګن) اِس ، مذ]ګرمي ، تاؤ ، توس ـ

**توشدان** :- (تـو + ش + دا + ن) [فا ، اِس ، مذ ، وا ، ج : توشدانونه] کمر بند ، کمرپټه ، ګړدنۍ ، هغه تهېله یا د چمړے نه جوړه پټۍ چې کارتوسان پکښې کښېښولے شي ـ

**توشــک** :- (تــو + ش + ک) [فـا ، اِس ، مــذ ، وا ، ج : توشــکونه ]ګدېلــه ، د مالُوچو نه ډکه بستره ـ

**توشول** :- (تو + ش + و + ل) [اَف : پ (قـاموس) مص مت ] شکارل ، سپي پـه څۀ پسې تو کول ، سپے جنګ ته پارول ، کشکارل ـ

**توشولے** :- (تـو + ش + وَ + لے) [اَف : پ (قـاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : توشـولي (مؤ : توشولې )]پارولے ، کشکارلے ، جنګ ته تیار کړے ـ

**توشونه** :- (تـو + ش + و + نـه) [اَف : پ (قـاموس) حمص ] پارَونـه ، کشـکارنه ، جنګ ته تیارَونه ـ

**توشـوُونکے** :- (تـو + ش + وُو + ن + کـے) [اَف : پ (قـاموس) اِس فـاع مـذ ، وا ، ج : توشـوُونکي (مـؤ : توشـوُونکې)] پـاروُونکے ، کشـکاروُونکے ، جنګ ته تیاروُونکے ـ

**تَوشے** :- (تـو + شے) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج : توشـي ] (۱)د لرګـي تال یا ښانک ، پینه ، پینکے (۲)هغـه مېـوه چـۀ د وادۀ زلمـے ئـې د تـګ پـه وخت د ناوې نه اخلي ـ

**توښ** :- (تو + ش + یا خ) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ]پام کړے ، فکر کړے

**کول** :- (اَف) اِص ، پام کول ، توجه کول ، فکر کول ـ

**کېدل** :- (اَف) اِص ، پام کېدل ، توجه کېدل ، فکر کېدل ـ

**تـوښ** :- (تـو + ش + یـا خ) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ]د دېـګ یـا د کټـوۍ براس ، تُوښم ـ

**ځیني ولاړېدل** :- (اَن) اِص ، توښ ورنه تلل ، براس ترېنه راوتل ـ

**ورنه تلل** :- (اَف) اِص ، و ـــــــــ توښ ځیني ولاړېدل ـ

**تُوښم** :- (تو + ش + م + یا خ +م) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ]و ـــــ تَوښ ـ

**توښه** :- (تو + شه + یا خه) [پ ، فا : توشه ، اِس ، مؤ ، وا ، ج : توښې] (۱) زېرمه ، د لارې خرڅ (۲) د خوراک سامان ـ

که توښه د آخرت کړې نن دې وار دے

راتـلـۀ نـشـتـه و دنـیا تـه دوبـاره      خواجه بنګښ

**تَوښے** :- (تـو + شـې یـا خـې) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـؤ ]د لـوګي ورکولـو بُخارۍ

**تُوغ** :- (تو + غ) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج : تُوغُونه ]بېرغ ، جنډا ، نشان

د فقیر خوشي له سازه له کتابه

اُمراء بــه ئې په توغ په نغاره کا      مرزا انصاري

**تـوغ** :- (تو + غ) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ]د ثالـث هغـه مېلمسـتیا چـې د دوۀ مرورو کسانو پخلا کولو د پاره ئې کوي ـ

**کول** :- (اَف) اِص ، د دوۀ کسانو د پخلا کولو د پاره ډوډۍ کول ـ

**تُوغــل** :- (تــو + غَ + ل) [اَف : پ (قــاموس) اِس ، مــذ ] (۱) د زیــن د لاتــدې اچوُونکے لمڅے یا کپړه ، توغم (۲) جړۍ ، په یومخ باران ـ

**توغم** :- (تو + غ + م) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج : توغمُونه ] و ـــــ تُوغل ـ

**تُوغول** :- (تو + غ + و + ل) [اَف : پ (قاموس) مص مت ] (۱) څۀ څیز په پټه ورل

(۲)څۀ څيز په مزکه رابغول يا اَرتول۔

**توغولے** :- (تو + غ+ وَ + لے ) [اَف : پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: توغولي] (۱) څۀ څيز په پټه وړے (۲) څۀ څيز په مزکه را ارتاؤ کړے۔

**توغونه** :- (تو + غ+ و + نه ) [اَف : پ (قاموس )حمص ] (۱)څۀ څيز په پټه وړنه (۲) څۀ څيز په مزکه را اَرتاوَنه۔

**توغوُونکے** :- (تو + غ+ وو + نه + کے) [پ (قاموس)اس فاع ، مذ ، وا ، ج: تو غوُونکي (مؤ: تُوغوُونکې) ] (۱) څۀ څيز په پټه وړُونکے (۲) څۀ څيز په مزکه را اَرتاوُونکے۔

**توَغۀ** :- (تو + غه) [پ۔ اِس ، مذ]انځر ، يوه مېوه۔

**توغه** :- (تو + غه) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مؤ ]و-تاغه۔

**توغېدل** :- (تو + غې + د + ل) [اَف : پ (قاموس)مص ] (۱)د څۀ څيز په غلا يو ډډې ته کېدل (۲)په غلا تلل۔

**توغېدلے** :- (تو + غې + دَ+ لے) [اَف: پ (قاموس)صف ، مذ ، وا ج: تُوغېدلي (مؤ: توغېدلې) ] (۱) څۀ څيز په غلا يو ډډې ته شوے (۲)په غلا تللے۔

**توغېدنه** :- (تو + غې + د+ نه) [اَف : پ (قاموس)حمص ] (۱) څۀ څيز په غلا يو ډډې ته کېدنه (۲)په غلا تلنه۔

**توغېدُونکے** :- (تو + غې + دُو + ن + کے) [اَف : پ (قاموس)فاع ، مذ ، وا ، ج: توغېدُونکي] (۱)څۀ څيز په غلا يو ډډې ته کېدُونکے (۲)په غلا تلونُکے

**تَوفيق** :- (تو + في +ق) [ع ، اِس ، مذ ] (۱) توان ، طاقت ، همت (۲) هدايت ، لاربنودنه۔

د کامل د صحت هسې رنګ تاثير دے
چې بنده ئې ذادي کا له توفيقه — مرزا انصاري

**عطا کول** :- اِص ، توان ورکول ، طاقت وربخښل ، همت ورکول ، توفيق ورکول۔

**ورکول** :- اِص ، و ـــــــ توفيق عطا کول۔

يو توفيق خدايه د صبر را عطار کړه
بيا هر غم زما په ځان دغسې پربړده — مطيع الله قريشي

**مل کېدل** :- اِص ، هدايت موندل۔

چې توفيق ورسره مل شۀ کار آسان دے
کل صدار دوارو خلقو په توفيق شه — خوشحال

**توقع** :- (تو + و+ ق + قُ+ ع) [ع ، اِس ، مذ](۱)اُميد ، طمع (۲) آسره (۳) باور

**کول** :- اِص (۱) اُمېد لرل ، طمع کول (۲) باور کول۔

**تَوقف** :- (ت + و+ ق + قُ+ ف ) [ع ، اِس ، مذ ] (۱)ايسارتيا ، ايسارېدنه ، ډيل ، اټالي (۲)صبر۔

**توک** :- (تو + ک) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ ]د تکم مخفّف ، نسل۔

**توک** :- (تو + ک) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: توکه ]قسم ، توګ۔

**تُوک** :- (تو + ک) [پ ، اِس ، مذ ]توکاڼي ، غوژګے۔

**اچول** :- اِص ، تُوکل ، غوژګے ، تُوکل ، توکاڼي اچول۔

**سهل** :- اِص ، زغم کول ، د برداشت نه کار اخستل۔

**توکارل** :- (تو + کا + ر + ل ) [پ ، مص مت ]سپي ته توتوکول ، سپي رابلل۔

**توکارلے** :- (تو + کا +رَ + لے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: توکارلي ، (مؤ :توکارلې )] سپے رابللے شوے۔

**توکارنه** :- (تو + کا + ر + نه ) [پ ، حمص ]سپي ته توتو کونه ، سپے رابلنه۔

**تُوکاڼے** :- (تو + کا + ن + ړي) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مؤ ] (۱)تُوک داني ، د تُوکاڼو لوښے (۲)د ماشومانو يوه لوبه۔

**تُوکاڼي** :- (تو + کا + ن + ړي) [پ ، اِس ، مذ ، ج ]تُوک ، غوژګے۔

**توکرکے** :- (تو + ک + ر + کے ) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ ، وا ، ج: توکرکي ] توکرے ، کودرے ، ټيکرے ، د خاورين لوښي ټوټه۔

**توکرے** :- (تو + کَ + رے ) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ ، وا ، ج: توکري ] و - توکرکے۔

**توکّل** :- (ت +وَ + ک + کُ+ ل ) [ع ، اِس ، مذ ]په خدا ے تکيه ، باور ، يقين (۲) شروع ، لاس پورې کونه ، نيت ، اراده (۳) ټُک

**توکل کول** :- اِص (۱) په خدا ے تعالي تکيه کول ، باور کول (۲) نيت کول ، اراده کول ، شروع کول۔

**توکلي** :- (ت +و + ک+ک +لي ) [پ ، اِس ص ] (۱) په ځان اتباري ډاډه ، کارته وړاندې کېدُونکے (۲) د ارادې خاوند (۳) په خداے باور لرونکے ، په خدا ے پاک تکيه کوُونکے۔

**توکل** :- (تو + ک+ل) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ ]هغه کمزورے او ډارن سپے چې په سپېمۀ پسې د نورو سپو نه لرې ځان ته ولاړ وي۔

**تُوکل** :- (تو + ک + ل ) [پ ، مص مت ]تُوک ، اچول ، غوژګے ، توکل ، توکاڼي توکل

**تُوکلے** :- (تو + کَ + لے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: تُوکلي (مؤ :تُوکلې) ] د خُلې نه غورزولے شوے۔

**تُوکُونکے** :- (تو + کو + ن + کے) [پ ، اِس فاع ، مذ ، وا ، ج: تُوکونُکي (مؤ: تُوکونُکې )]تُوک اچوُونکے ، غوژګے ، تُوکوُونکے۔

**تُوکڼې** :- (تو + ک + ن + ړې ) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مؤ ] تُوکاڼې ، تُوک داني

**تُوکڼي** :- (تو + ک + ن + ړي) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ] بېهوده ، فضول۔

**تُوکونے** :- (تو + کو + نے ) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ ] هغه کُلچه يا ډوډۍ چې د روټۍ پخولو نه پس پاتې اُوړنه پخولې شي۔

**توکه** :- (تو + که) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: توکے ] توقه ، توقړه ، د جوارو وړے چې دانې ترېنه رېږېدلے وي۔

**توکه** :- (تو + که) [پ (ب ، خ) اِس ، مؤ ] قسم ، توګه ، توکے ، توک

**تُوکه** :- (تو + که) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مؤ ] ګټه ، فائده

**توکے** :- (تو + کے) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ ، وا ، ج: توکي ]قسم ، توک ، توک

**څوتوکي سره ګډول** :- (اَف) اِص څو قسمه څيزونه سره يو ځاے کول۔

**توکي توکي** :- (تو + کي + تو + کي) [اَف : پ (قاموس)ص ، مذ ] قسم قسم ، رنګ رنګ ، راز راز۔

**بېلول** :- (ظفر) اِص ، قسم قسم سره جدا کول ، هر قسم ځان ځان ته بېلول۔

**توګه** :- (تو + ګه) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مؤ ، وا ، ج: توګې ] (۱) توکه ، توکے ، قسم (۲) څيز خبره ۔

دا دوه توګه و هوښيارو ته يو راز دے
د نامرد سرې برېتونه بربت د مږې — خوشحال

**توګے** :- (تو + ګے) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ ]ټولې ، جته ، قطار۔

**توګے** :- (تو + ګې) [پ (ګن) اِس ، مذ ، وا ، ج: توګي ]د خرې بچوړے خرګے ،

د خرې وروکے بچے۔

**تول** :- (تو + و + ل) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ]سیال، سارے

**تول** :- (تو + ل) [اِپ ، اِس ، مذ وا ، ج: تولُونه ] وزن ، تلنه۔

ستـرګـې دې هـر ګوره برابرې دي په تول کښې
مسته ماتول کا لکه سپین ذمرے په کول کښې — خواجه بنګښ

**برابـرول** :- اِص (۱) وزن برابـرول (۲) سـرپُـوره کـول (۳) ځـان خلاصـول (۴) د دښمنۍ بدل اخستل۔

**کمېدل** :- اِص (۱)وزن کمېدل (۲)بې عزّته کېدل ، شرمېدل۔

کـله لاړ مـومـي د وصـل و جنت ته
چې د عشق پـه وزن کم شي تول د چا — بېدل

**کول** :- اِص ، وزن کول ، تلل۔

**کېدل** :- اِص (۱)وزن کېدل ، تللے کېدل (۲) برابرېدل ، یو شان په تول ختل۔

د تمام وګړي غم به دومره نۀ وي
چې زما د زړۀ د غمه سره تول شي — کامګار ختک

**تول** :- (تو + ل) [اِپ ، ع : طول ، اِس ، مذ ]لوے والے ، اُوږدوالے۔

چې د دور دا کړې کېنې پرې شته دي
کـوه قـاف دې نـۀ نـازبرې په دا تول — حمید

**تُول** :- (تو + ل) [اِپ، اِس ، مذ ] (۱)فصل ، کرونده (۲)تتې ، د کروندې مزکه (۳)بڼ ، باغ۔

**خپـل تـول لـرل** :- اِص ، د خپله تُول کېدل ، خپـل مزکه پـټے لـرل ، د جائیداد خاوند کېدل ، دفتر لرل۔

**د خپله تول کېدل** :- (اَف) اِص ، و ـــــ خپل تُول لرل۔

**تُولان** :- (تو + لا+ن) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ ] (۱)تُولاتد ، د زرکې قدم ، (۲) په ناز تلل ، په کېنچ مکېز تلل۔

**کول** :- اِص ، په ناز نخروتلل ، په کېنچ مکېز تلل۔

**تُـولائي** :- (تو + لا+ ئي) [اِپ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: تُولایاني ] نهالي ، نیالي ، توشک ، د کپړې او مالُوچونه جوړه ګدېله چې په کټ غوړولے شي۔

**تولپک** :- (تو + ل + پَ + ک ) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ ]وسو جمیا ، جمامه ، د شړشمو یو قسم۔

**تولتـک** :- (تـو +ل + ت + ک ) [اِپ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: تولتکونـه ] تلتـک ، برستن، شیرک ، کنجڼ۔

کشـکه ځـوان د پـښـتـانۀ په تنګ کښې مـړ وے
نـۀ چـې ګـور لـره روان شـولـه تـولـتـکـه — خوشحال

**تولک** :- (تو + لَ + ک) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ ] یو قسم ساګ چې کچه خوړلے شي او پخولے هم شي۔

**تُولکه** :- (تو + لَ + که) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مؤ ، وا ، ج: تُولے ] تُولـه ، د وریژې پُونکے یا پُونګے۔

**تُولند** :- (تـو + لَ + ن + د) [اَف : پ (قـاموس)ص ] پـه زوږ ، رغړېدو تـه تیـار ، ځورند۔

**تولوالے** :- (تـو + وَ + ل + وا + لے ) [اَف : پ (قـاموس)اِس ، مـذ] برابـري ، تناسب۔

**تُولول** :- (تو + ل+ و +ل ) [اِپ ، مص مت ]ځرخ ورکول، رغړول۔

**تولول** :- (تو + ل + و + ل ) [مص ، مت ]تول کول ، وزن کول ، تلل۔

**تُولونه** :- (تو + ل + و + نه ) [اِپ ، حمص ]ځرخ ورکونه ، رغړونه۔

**تولونه** :- (تو + ل + و + نه ) [اِپ ، حمص ]تول کونه ، وزن کونه ، تلنه۔

**تُولُونکے** :- (تـو + ل + وُو + ن + کے ) [اِپ ، اِس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: تُولـوُونکي (مؤ : تُولووُنکې)] ځرخ ورکوُونکے ، رغړوُونکے۔

**تولوُونکے** :- (تـو + ل + وُو + ن + کے ) [اِپ ، اِس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: تولـوُونکي (مؤ : تولووُنکې )]وزن کوونکے ، تلوُنکے ، تول کوُونکے۔

**تُوله** :- (تو + له) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مؤ ، وا ، ج: تولې ]و ـــــ تُولکه۔

**توله** :- (تو + لـه ) [ه ، اِس ، مـؤ ، وا ، ج: تـولې ] دولس ماشې ، د یو وزن یا د تول نُوم

**تولې** :- (تو + لې) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مؤ ](۱) د ریښمو یا زرو تللو تله (۲) د شولو وبخ۔

**تَولې** :- (تو + لې) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مؤ ]پیاله۔

**تُولې** :- (تو + لې) [اَف : پ (قـاموس)اِس ، مؤ ] (۱)چمنې ، د لُوګې د وتـو لاړ ، لُوګي خانه (۲) خالي کارتوس ، کرکه (۳) یو قسم واښۀ۔

**تُولي** :- (تو + لي) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ]د کړکي ، دروې یا کانې پنجه۔

**تولید** :- (تو + لي + د) [ع ، اِس ، مذ ]پېداوښت ، پېدا کول ، زېږول۔

**تُولېدل** :- (تو + لې + د + ل) [اِپ ، مص لا]تول کېدل ، تللے کېدل ، وزن کېدل۔

**تُولېدنـه** :- (تـو + لـې + د+ نـه ) [ اَف : پ (قـاموس )حمـص ] ځـرخ کـونـه، تولان کونه۔

**تولېدنـه** :- (تـو + لـې +د + نـه ) [اَف : پ (قـاموس)حمـص ] ځـرخ کـونـه ، تولان کونه۔

**تولېدنه** :- (تو+لې+ د+ نه) [اِپ، حمص]وزن کېدنه، تول کېدنه، تللے کېدنه

**تَولیه** :- (تـو + لِ + یَـه) [اُر ، اِس ، مـؤ ، وا ، ج: تـولیې ، تولیاګـانې ] هغـه بُـور داره کپړه چې لاس مخ او بدن پرې وچولے شي۔

**تُومار** :- (تو + ما+ ر ) [اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ]خارش ، خارښت ، کَهه۔

**کول** :- (اَف)اِص ، خارش کول ، خارښتېدل ، کهه کول۔

**تُوماري** :- (تـو + مـا + رِي) [اَف : پ (قـاموس)ص ، مـذ ]خارښتي هغـه سړے چې د خارښت په مرض اَخته وي۔

**تُومان** :- (تو + ما + ن) [تُو ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تُومانُونه ]یوه سکه تُمن۔

**تُومبسـکه** :- (تـو + م +ب +س +کـه ) [اَف : پ (قـاموس)اِس ، مـؤ ، وا ، ج: تومبسکے ]اُوچته مزکه ، لوړۀ مزکه۔

**تُومبل** :- (تو + م + ب + ل) [اِپ (ګن) مص مت ] مـالوچ پـه ډانډې یـا ډغ وهـل ، تومبیا کول۔

**تُومبئ** :- (تو + م +بِی) [اِپ (ب ، خ)اِس ، مؤ ]اُوکراښې ، اخور۔

**تُومبیا** :- (تـو + م +ب +یـا ) [اِپ ، ص ، مؤ ]پـه ډانډې وهلي شـوي مـالُوچ صفا شوي مالُوچ۔

**کـول** :- اِص ، مـالوچ پـه ډانډې یـا ډغ وهـل ، تومبـل ، مـالوچ صـفا کـول ، د مالُوچ چېمبر په ګټو شُوکول او ریزه ریزه کول۔

**کېدل** :- اِص (۱) مالوچ په ډانډې یا ډغ وهلے کېدل ، مالوچ تومبلي کېدل (۲) زیات خوراک خوړلو له کبله خېټه خرابېدل۔

**تومله** :- (تو + م + له) [اَف : پ ، اِس ، مؤ ]تومنه۔

**تُـومن** :- (تـو + م + ن ) [اِپ ، اِس ، مـذ ] (۱)تُومني ، تـړم ځیـز (۲) داشـخار بُوټې (۳)د شل روپۍ سکه (۴)تپولے ګوند ، عزیزولـي (۵) د کرونـدې تومنه یا تخم۔

چې په درست تُومن اوځاره
نـن هـغـه ده زمـا یـاره          خوشحال

**تُـومن** :- (تـو + م + ن + ړ) [اَف : پ (قـاموس) ص ، مـذ (مـؤ : تُومنه)] تُومن ، ترم ځيز ـ

**تومنـه** :- (تـو + م + نـه) [اپ ، اس ، مـؤ ، وا ، ج: تـومنې] (۱)د ماسـتو جوړولـو مایه ، تېمنه ، تومله ، تونه سَبوڼ ، د کروندې تخم ـ

**کول** :- اص ، ماستهٔ جوړول ، خمیر جوړول ـ

**تومه** :- (تـو + مـه) [اَف : پ (قـاموس)اس ، مـؤ ، وا ، ج: تـومې] (۱) د څهٔ ځیـز عرق (۲) مایه (۳) د باز خوراک (۴) غوړه نوړې ، غوړه ګپه ـ

**ورکول** :- (اَف) اص (۱) غوړه نوړې ورکول (۲) رشوت یا بډې ورکول

**تومېدل** :- (تو + مې + د + ل) [اپ (ظفر) مص لا] (۱)خاربنتېدل (۲) مایه کېدل ، خمبیره کېدل ـ

**تُون** :- (تو + ن) [اَف : پ (قاموس)اس ، مذ] (۱)د ځاے ظاهرولو کلمه ،لکه : مېړتون ، پوهنتون (۲)د اوسېدلو ځاے (۳)د غرهٔ یوه ونه ـ

**تُـونبړی** :- (تـو + ن + ب + ړ + ی) [اپ ، ه : تُـونبي ، اس ، مـؤ] هغـه کـدو چې پاروګان ترې نه بین جوړوي ـ

**په لاس کښې اخستل** :- اص ، فقیري اختیارول ، سادُو کېدل ، جوګي کېدل ـ

**تُونـده** :- (تـو + ن + ده) [اَف : پ (قـاموس)اس ، مـؤ] (۱) وچې ضـد ، لمـده مړئ ، غوړه مړئ (۲)دښمني ـ

**تونه** :- (تو + ن + رَه) [اَف : پ (قاموس)اس ، مؤ]توپ بازي ـ

**کول** :- (اَف) اص ، توپې چلول ، توپ بازي کول ـ

**تونې** :- (تو + ن + ړي) [اپ (ظفر) اس ، مؤ]د الماریٔ په څېر د لرګي صندوق چې لوے لوے اوچتې پښې ورته لګېدلې وي ـ

**تـونس** :- (تـو + ن + س) [اَف : پ (قـاموس)اس ، مـذ]دپکـه ، غُصـه ، قهـر ، کاوړ ، رعب ، دونس ـ

**تونس کول** :- اص ، دپکه کول ، غصه یا قهر کول ، کاوړ کول ، دونس کول

**تَونسه** :- (تو + ن + سَه) [اس معرفه]په ډېره غـازي خان کښې د یو ځاے نوم چې د یو مشهورې پیر خانې ګدیٔ پکښې ده ـ

**تُونګ** :- (تو + ن + ګ) [اَف : پ (قاموس)اس ، مذ] (۱)ګډوډ تیت ، خور وور ، شیندلے (۲)د غلې ګودام ـ

**تُونګ** :- (تو + ن + ګ) [اَف : پ (قاموس)اس ، مذ ، وا ، ج: تونګان] د خاورو کُوزه یا صراحي ـ

**تونــګ** :- (ت + و + ن + ګ) [اَف : پ (قـاموس)اس ، مــذ وا ، ج: تونګونــه] (۱)هغـه ټوکریٔ چې زنانه جامې پکښې کښېږدي (۲)د تنور وال هغـه تخته چې ډوډیٔ پرې ږدي ـ

**تـونګر** :- (ت +و + ن + ګ + ر) [اپ ، فـا : تـوانګر ، اس ، مـذ (مـؤ ، وا: تـونګره ،ج : تونګرے)]مالدار ، موړ ، شته من ، دولتمند ـ

**تونګه** :- (تو + ن + ګه) [اَف : پ (قاموس)اس ، مؤ، وا ، ج: تونګې] پېغله جینیٔ ـ

**تونګـے** :- (تـو + ن + ګـے) [اَف : پ (قـاموس)اس ، مـذ ، وا ، ج: تـونګې]هغـه ورکوټے صندوق یا بسته چې د کانې یا مزرې نه جوړوي ـ

**تونه** :- (ت + وَ + نه) [اَف : پ (قاموس)اس ، مؤ]و ــــــتومنه

**توول** :- (تو + و + ل) [اپ مص مت]تویول ، توے کول ، تلول ، بیول ـ

**توولے** :- (تو + وَ + لے) [اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: توولي (مؤ : تـوولې)] تویـول ، توے کول ، تلول ، بیول ـ

**توولے** :- (تو + وَ + لے) [اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: تـوولي ، (مؤ : توولې)]تویولے ، توے کړے ، تلولے ، بَیولے ـ

**توونُکے** :- (تـو + وُو + ن + کـے) [اپ ، اس ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج: تـوونُکي ، (مـؤ : تووونُکې)]تویوونکے ، تلوونُکے ، بَیوونکے ـ

**توه** :- (تو + وَه) [اَف : پ (قاموس)اس ، مؤ ]د مزکې کچه پُوله یا برید ـ

**تَــوه** :- (ت + وه) [اَف : پ (قــاموس)اس ، مــؤ] (۱) شــاه تُــوت ونــه (۲) خوند ، ذائقه ـ

**توهړ** :- (تو + ه + ړ) [اَف : پ (قاموس)اس ، مذ]د زرګوټے یا زقوم ونه ـ

**توه کې** :- (تو + وَه + کې) [اَف : پ (قاموس)اس ، مؤ] توده تیږه ، تود کاڼے

**توهّم** :- (تَ + وَه + هُ + م) [ع ، اس ، مذ] (۱)وهم ، وسواس (۲)ګمان ،شک

**تَوهین** :- (تو + هي + ن) [ع ، اس ، مذ ]بې عزتي ، سپکاوے ـ

دا توهین د مردیت نهٔ دے نو څهٔ دي
نـر ښـځان هم د نر توب دعوىٰ کوي          طاهر کلاچوي

**تــوهین عــدالت** :- (تــو + هــي + ن + ع + دا + ل + ت) [اس ، معـر ، مـذ] د عدالت سپکاوے ، هرکله چې څوک داسې وکړي یا ئې ولیکي چې د عدالت سپکتیا ترې څرګندېږي نو په هغهٔ د توهین عدالت په جرم کښې مقدمه چلیدے شي ـ

**توی** :- (ت + و + ی) [اپ (ګن) اس ، مؤ]ورکوټې کړاهي ـ

**تـوے** :- (تو + ے) [اپ ، ص] (۱)ضـائع شـوے ، تـل شـوے (۲)عبث فضـول ، ضائع (۳)خوړ ، الګډه ـ

**تلل** :- اص (۱)ضائع کېدل ، عبث تلل (۲)خوړ یا الګډ بهېدل ـ

**تـوے** :- (تو + ے) [اَف : پ (قاموس)اس ، مذ]سېلاب ، نُوز ، نیز ـ

**تـوے** :- (تو + وے) [اَف : پ (قاموس)اس ، مذ]د بزو رَمه ـ

**تویالکه** :- (تو + یا + ل + که) [اَف : پ (قاموس)اس ، مؤ ، وا ، ج: تویا لکې ]دېګ

**تویند** :- (تو + ي + ن + د) [اَف : پ (قاموس)مذ]ارژند ، رژېدُونکے ـ

**تویول** :- (تو + ي + و + ل) [اپ ، مص مت] (۱)توول ، توے کول ، تلول بَیول (۲)ضائع کول ، عبث کول ـ

**په شېږو کښې غوړي تویول** :- مح ، عبث کارکول ، بې ځایه خواري کول ـ

**تویونګ** :- (تو + ي + وَ + ن +ګ) [اَف : پ (قاموس)حمص]و ـــــــ تویونه

**تویونه** :- (تو + ي + و + نـه) [اپ ، حمـص] (۱)تویونګ ، تَلونـه ، تـوے کونـه ، بَیونه (۲) ضائع کونه ، عبث ورکونه ـ

**تویُوونکے** :- (تـو + ي + وو + ن + کـے) [اپ ، اس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: تویُـوونکي (مؤ : تویوُونکې)] (۱)توے کوُونکے ، بَیوُونکے (۲) ضائع کوُونکے ـ

**تویېدل** :- (تو + یې + د + ل) [اپ ، مص لا] (۱)توے کېدل ، تلېدل ، بیېدل (۲) ضائع کېدل ، عبث تلل (۳) رژېدل ، دُوړېدل ـ

چې فریاد نعرې وهي پسې چغار کا
چــې ګلونه واړه توے په خزان شول          خواجه بنګښ

**وینې تویېدل** :- اص (۱)وینې بهېدل (۲)جنګ جګړه کېدل ـ

**تویېدنګ** :- (تو + یې + دَ + ن + ګ) [اَف : پ (قاموس)حمص]و - تویېدنه ـ

**تویېدنه** :- (تـو + یې + د + نـه) [اپ ، حمص] (۱)تویېدنګ ، تویېدهٔ ، تَلېدنـه ، تـوې کېدنـه ، بیېدنـه (۲)ضـائع کېدنـه ، عبـث کېدنـه (۳)رژېدنـه ،

دُوړېدنه -

**تويېدُونکی** :- (تو + يې +دُو +ن + کے) اپ ، مف ، مذ ،وا ، ج : تويېدُونکي (مؤ : تويېدُونکې) [(۱)تَلېدُونکے ، نوے کېدُونکے ، بيېدُونکے (۲)ضائع کېدُونکے ، عبث کېدُونکے ، (۳)رژېدُونکے ، دُوړېدُونکے -

**تویېدهٔ** :- (تو + يې + ده) اپ ، حمص او ـــــــ تويېدنه -

**تهٔ** :- (تَه) [اپ ، حرف] (۱)پورې ، تر پورې ، د ظرف ټکے ،لکه "لکه زهٔ نوښار ته ځم" (۲)ورته ، لکه : "هغهٔ ته اووايه"

**تَهه** :- (تَ + ه) [ه ، اس ، مذ] (۱)د کاغذ په شان نرۍ پرده ، پرک (۲) تپ کړے ، لاندې باندې ، پرک په پرک ، قت په قت -

**کول** :- اص ، لاندې باندې کښېښول ، قت په قت کول ، نغښتل ، پرک په پرک کول ، تپ کول -

**تهال** :- (تها + ل) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج: تهالونه] تال ، د تانبې ، زيړو يا د کُوټو وغيره نه جوړ لوے تالے يا ښانک -

وښهٔ مخ وته له ورايه ځلېلاند شم
لکه ووينې لوغسې تهال په سترګو    خوشحال

**تهان** :- (تها+ ن) [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج: تهانونه] تان ، د ټوکې رخت يا د کنارۍ تان ، د کپړې يو خاص مقدار -

**تهانه** :- (تها+ نه) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تهانې] (۱)تانه ، د پوليس چوکۍ ، هغه ځاے چې پکښې د پوليس عمله اوسي (۲)په مالاګنډ ايجنسۍ کښې يو مشهور کلے -

**تهانېدار** :- (تها + نې + دا + ر) [ه ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: تهانيداران] (۱)تانېدار ، د پوليس سب انسپکټر يا اسټنټ سب انسپکټر ، کوتوال (۲)په خرش پرش کښې ابغ نبغ کس ، معتبر -

**تهانېداري** :- (تها+ نې + دا + ري) [ه ، اس ، مؤ] (۱)تانېداري ، پوليس افسري ، کوتوالي (۲)معتبري -

**تهجّد** :-(ت + ه + ج + جُ + د) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج: تهجدُونه] (۱) د شپې ېښېدل (۲) د شپې نمونځ چې د نيمې شپې او د سحرکېدو ترمينځ کولے شي -

**کول** :- اص ، په نيمه شپه راپاڅېدل او د خداے پاک عبادت کول -

**تهجّد گزار** :- (تهجد + ګ +زا +ر) افا ، اس ، معر ، مذ (مؤ ، وا: تهجد ګُزاره ج: تهجد ګُزارے)[هغه سړے چې په نيمه شپه راپاسي او د خداے پاک عبادت کوي -

زما خوب له اندېښنو نهٔ شي بيدار شم
و عالم وته په دا تهجد ګزار شم    خوشحال

**تهخانه** :- (ت + ه + خا + نه) [فا ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ته خانې] تاهخانه ، هغه کوټه يا کمره چې په مکان کښې د کوټې د فرش د لاندې په مزکه کښې غرقه جوړه کړې شي ، اکثر د اُوړې غرمه پکښې تېرولے شي ولې چې يخه وي ، يخه کوټه ، سردخانه -

**تهــذيب** :- (ت + ه + ذي + ب) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج: تهذيبُونه] (۱)د ښو اخلاقو نه کار اخستل ، سړيتوب ، ښائيستګي ، انسانيت (۲) د معاشرې د آدابو او د رسم ورواج پابندي (۳)لياقت ، قابليت -

آئينه د نننۍ تهذيب دې ښهٔ ده
خو جوهر پرې د ساده پرون پکار دے    حمزه شنواري

**اخيستل** :- اص ، ښهٔ خوي زده کول ، سړيتوب زده کول ، تهذيب حاصلول ، تهذيب زده کول -

**حاصلول** :- اص ، و ـــــ تهذيب اخستل -

**ښيئل** :- اص ، چاته ښهٔ خوي ورزده کول ، څوک په سمه لار اچول -

**موندل** :- اص ، د ښواخلاقو خاوند کېدل ، ښهٔ سړيتوب په برخه رسېدل -

**تَهـذيب يافته** :- (تهـذيب + يا + ف + ته) [فا ، اس ص] (۱)چاچې تهـذيب موندلے وي ، مهذّب ، په ادب ښائسته ښهٔ اخلاق لرُونکے ، چې ښهٔ تربيت ئې حاصل کړے وي (۲)تعليم يافته -

**تَهرډ** :- (ته + ر + ډ) [اَنګ ، اس ، عدد ، مد] دريم -

**تهـرډ کــلاس** :- (تـه + ر + ډ +ک + لا+ س) [اَنګ ، ص]تهاټ ګـلاس ، (۱) دريمه درجه ، د دريمې درجې (۲) د رېل ګاډې دريمه درجه يا ډبه (۳) سينما کښې د ناستې د ټولو نه لاندې ځاے (۴) ردي او معمولي څيز ، بې خونده -

**تَهرمـامېټر** :- (تـه + ر + مـا + مـې +ټ +ر) [اَنګ ، اس ، مذ وا ، ج: تهرمامېټرونه]د وجود ګرمي معلوموُونکے آله ، د پنسل په شان د شيشې نرۍ شان نلکۍ چې د نرو نرو کرښو په ذريعه پرې باندې درجې لګېدلے وي ، او په لاندينې سر کښې ئې پاره ډکه وي ، دا آله د تبې د تاؤ يا حرارت معلومولو د پاره استعمالولے شي -

**تَهس نَهس** :- (ت + ه + س+ نَ + ه + س) [ه ، ص ]تس نس ، تباه برباد وران او جاړ خوارخسته -

**تَهليل** :- (ته + ه + لي + ل) [ع ، اس ، مذ ]په اُوچت آواز لااله الاالله وئيل -

په تسپو کښې دې بلا ده
هے تـوبه ستا له تهليله    خوشحال

**تُهمت** :- (تـه + ه + م+ ت) [فا ، اس ، مـذ ، وا ، ج: تهمتُونه ]خراب ګمان ، ناکاره يا خرابه رائے ، الزام ، داغ ، بدنامي ، تور -

هسې مست يم په ساغر د يار د مينې
چې زهـير کلـه د خلقو په تهمت يم    کامګار خټک

**پورې کول** :- اص ، په چا د بدنامۍ داغ لګول ، په چا د دروغو خبره ورتپل ، الزام لګول ، بدنامه کول ، تهمت تپل ، تهمت لګول ، د تهمت په کانړو ويشتل ، تور پورې کول -

**پورې کېدل** :- اص ، په چا د تهمت يا د بدنامۍ داغ لګېدل ، تور پورې کېدل

**تپل** :- اص ، و ـــــــ تُهمت پورې کول -

**لګول** :- اص ، و ـــــــ تُهمت پورې کول -

**د تُهمت په کانړو ويشتل** :- اص ، و ـــــــ تهمت پورې کول -

لوے هلک مې د تهمت په کانړو ولي
لکه رَمي د جمارو اهل حج کا    کامګار خټک

**د تُهمت ځاے** :- اص ، داسې ځاے چې پکښې د بدنام کېدو ويره ،د بدنامۍ کور

**تُهمتي** :- (ت + ه + م + تي) [اپ ، اس] (۱)د تُهمت وړ ، چې تور پرې پورې شوے وي بدنام (۲) تهمت لګوُونکے ، بدناموُونکے ، تور پورې کُوونکے

**تهن** :- (ت + ه+ ن) [اَف : پ (قاموس) ص ، مذ]اژور ، غرق -

**تهنه** :- (ته + ه + نه) [اَف :پ (قاموس) اس ، مؤ ]اژورتيا ، ژوروالے-

**تهوک** :- (تهو +ک) [ه ، اس ، مذ ]يو ځائي ، څټل ، يکمشت ، توک ، څهٔ جنس په يو ځاے زيات مقدار کښې خرڅول ، د پرچون ضد-

**تهـوک فـروش** :- (تهـوک + فَ+ رو+ ش) [ه ، اس ص ، مـذ ، وا ، ج: تهـوک فروشه ]تهوک خرڅوُونکے ، لوے سوداګر ، د منډۍ خاوند -

**تهېټـر** :- (تـه + ې + ټ + ر) [اَنـګ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: تهېټرونـه] تېټـر ، د تماشې ځاے ، ناټک ، بائيسکوپ.

**تهېـدل** :- (ت + هې + د + ل) [اَف: پ (قـاموس) مـص لا] رپېـدل ، رېږدېـدل ، دګېدل.

**تهېدنـه** :- (ت + هې + د + نـه) [اَف : پ (قـاموس) حمـص] تهېـدهٔ ، رپېدنـه ، رپېدهٔ ، دګېدنه ، رېږدېدنه.

**تهېدُونکے** :- (ت + هې + دُو + ن + کے) [اَف : پ (قـاموس) مف ، مـذ ، وا ، ج: تهېدُونکي (مؤ : تهېدُونکې)] رپېدُونکے ، رېږدېدُونکے ، دګېدُونکے.

**تهېدهٔ** :- (ت + هې + دهٔ) [اَف : پ (قاموس) حمص] و- تهېدنه.

**تهېله** :- (تهې + له) [ه ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: تهېلې] الويـه بـوجګۍ يا بُوځخکۍ ، خلته ، تبله ، کځوړه.

**تَهېنک يو** :- (تهې + ن + ک + يُو) [اَنګ ، کلمه] شکريه ، مننه.

د غـافـل پـه سـپـينـه رېـره غلط مه شه
د هلک غوندې ئې پا لهٔ خولهٔ کېنې تے دے — خوشحال

**تے** :- (تَے) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تي] امېمے د بدن هغـه حصـه چې د هر پئ ورکـوُونکي ځنده سري پـه وجـود کنبـې بچـو لـه د پئ ورکولـو د پـاره جوړه وي.

**پرېکول** :- اِص ، ماشوم د پيو رودلو نه منع کول.

**تيخورول** :- (ب، خ) اِص ، د ماشوم د مور تے تخنول.

**تې تيخورېدل** :- (ب، خ) اِص ، تے راوېښېدل ، سينه ډکېدل.

**تې کول** :- اِص ، د ورکوټي ماشوم سره د تي خبرې کول.

**خوړل** :- (سو) اِص ، تے رودل ، د تي پئ څښل.

**خوړېدل**:- اِص ، په څهٔ څيز پسې زهيرېدل ، د څهٔ څيز نـه د محرومتيا احساس پيدا کېدل.

**ډکېـدل** :- اِص (۱) لګېدوتـه نـزدې کېـدل ، د بچي پيدا کېـدو تـه لـږې ورځـې پاتې کېدل (۲) په تي کښې پئ زياتېدل.

**راوېښېدل** :- اِص ، د مور په تي کښې د پيو د زياتي له کبله تيخور پيدا کېدل

**رودل** :- اِص ، د ماشوم د تي نه د مور پئ څښل.

کـه اول اخـر پـه حـال بـاندې رانورې
لکـه اوړکے پـه تي پورې پئ رو — مرزا انصاري

**ګوډېدل** :- (اَف) اِص په تي کښې پئ ختمېدل ، تے وچېدل.

**نهٔ ورکول** :- اِص ، د بخيلۍ او سختۍ غوا مېښې لوشلو ته نهٔ اودرېدل او بچي ته نهٔ پرېښودل.

**وچېدل** :- اِص ، و تے ګوډېدل.

**ورسره رودل** :- اِص ، د چا سره په يو ځاے د تي نه پئ څښل ، د چا د تي ورور جوړېدل.

**پـه تي اچول** :- اِص ، تي تـه اچول ، ماشوم تـه د تي نـه پئ ورکول ، ماشوم قلارول.

**تي پـورې کـول** :- (ب، خ) اِص ، تي تـه اچول ، ماشوم تـه تے ورکول ، ماشوم قلارول

**تي ته اچول** :- اِص ، و - په تي اچول.

**تَيونه تشېدل** :- اِص ، په سينه کښې پئ ختمېدل ، سينه وچېدل.

**تيونه کول** :- اِص : غټېدل ، مضبوطېدل ، د ځوانۍ دور راتلل.

**د تي څخه پرېکول** :- اِص ، ماشوم ته د تي نه منع کول.

**تې** :- (تې) (ت، حرف) (۱) ت ، د الف بې تې د پټې څلورم تورے (۲) ترې ، ورنه ترېنه ، (۳) د تهٔ ئې مخفف.

**اخستل** :- اِص ، ترېنه اخستل ، ورنه تر لاسه کول.

**تيا** :- (ت + يا) [پ ، حرف] د صفت مجرد په آخر کښې د لاحقې پـه ډول راځي ، لکه: لوړتيا ، مېلمستيا او داسې نور.

**تيـار** :- (ت + يـا + ر) [افـا ، ص ، مـذ (مؤ ، وا: تيـاره ، ج: تيـارې)] (۱) آمـاده ، مستعد (۲) مکمـل ، روغ ، جوړ ، پوره (۳) غټ پټ ، تازه تيـار ، تکړه ، څورب (۴) پوخ ، بـالغ ، ځوانۍ تـه رسېدلے ، پـه زور کښې (۵) سنبال ، سم ، ځان جوړ کړے.

برند چې کتل زده کړي ايله سترګې شي
اوس غـشـي ويـشـتـلو لـره تـيـارې دي — حمزه شنواري

**کول** :- اِص ، تيارول.

**کېدل** :- اِص ، تيارېدل.

**تيارول** :- (ت + يا + ر + و + ل) [پ ، مص مت] (۱) آماده کـول ، پـه څـهٔ کـار کولـو راضي کول ، تيار کول (۲) درستول ، سمول ، جـوړول پخـول (۳) غټـول ، څربول (۴) سنبالول.

**تيارونګ** :- (ت + يا + ر + وَ + ن + ګ) [اَف : پ (قاموس) حمص] و ــ تيارونه

**تيارونه** :- (ت + يا + ر + و + نه) [پ ، حمص] (۱) تيارونګ ، آباده کونه ، پـه څـهٔ کـار کولـو راضـي کونـه (۲) درسـتونه ، جوړونـه ، پخونـه (۳) غټونـه څربونه ، (۴) سنبالونه.

**تيــاروُونکے** :- (ت + يــا + ر + وُو + ن + کــے) [پ ، اس فــاع ، مــذ ، وا ، ج: تيـاروُونکي ، (مـؤ : تيـاروُونکې)] (۱) آمـاده کـوُونکے ، پـه څـهٔ کـار کولـو راضي کوُونکے (۲) درستووُنکے ، سموُونکے ، جـوړوُونکے (۳) غټوُونکے ، څربوُونکے (۴) سنبالووُنکے.

**تياره** :- (ت + يا + ره) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: تيارې] تورتم ، تاريکي.

رڼاګانې مې غوښتې خو تيارې مخې ته راغلې
او ژونـدي مـې لټول خو اديرې مخې ته راغلې — طاهر کلاچوي

**تياره کول** :- اِص ، تورتم جوړول ، تاريکي کول.

**کېدل** :- اِص ، تورتم جوړېدل ، شپه کېدل.

**په زړهٔ تيارهٔ راتلل** :- مح ، زړهٔ خرابېدل ، زړهٔ راډکېدل ، د کوز کتلو حالت پيدا کېدل

**پر سترګو توره تيارهٔ کېدل** :- مح (۱) ديـد کمېـدل ، د سترګو نظر کمېدل ، (۲) د بيمارۍ يا ستومانۍ له کبله په سترګو څهٔ نهٔ ليدل.

**توره تيارهٔ** :- اِص ، ښخي تورتم ، تورتيپ.

**توره تياره جوړېدل** :- اِص ، ښخي تورتم جوړېدل ، تورتيپ کېدل.

**تيـاري** :- (ت + يـا + رِي) [افـا ، اِس ، مـؤ ، وا ، ج: تيـاريـانې] (۱) تيـارے ، آماده کېدنه (۲) درستوالے ، ترتيب (۳) غټوالے ، غټېدنه ، څربېدنه (۴) سـنبالېدنه ، ډول سـنګار (۵) څـهٔ امتحـان تـه ځـان تيارونـه ، او مطالعه کونه.

چې ګلګوني جامې واغوندې سواري کړې
خـداے زده بـيا د چا د قـتـل تياري کړې — حميد

**کول** :- اِص (۱) تيـارے کـول ، ځـان سنبالول (۲) د امتحـان د پـاره مطالعـه کول.

نـن مـې اولـيـده ولاړه مـحـبـوبـا پـه څـو بـاريکه
په اخلاص ئې خپسر جوړ که اوس د جنګ ته تياري که — مرزا انصاري

**کېدل** :- اص (۱)تیارے کېدل ، سنبالېدل (۲)د امتحان د پاره مطالعه کېدل ـ

**تیارېدل** :- (ت + یا + رې + د + ل) [پ ، مص لا] (۱)آماده کېدل ، پـه ځـۀ کـار کولـو راضـي کېـدل (۲)پخېـدل ، جوړېـدل (۳)غټېـدل ، څربېـدل (۴)سنبالېدل

ملا بسته ئې د خدمت وته تیار شه

چې په تاباندې دا هسې مهمان راغے خواجه محمد بنګښ

**تیارېدنګ** :-(ت + یا + رې + دَ + ن + ګ) [اَف : پ (قاموس) حمص] و ـــ تیارېدنه

**تیارېدنـه** :- (ت + یـا + رې + د + نـه) [پ ، حمـص] (۱)تیارېـدنګ ، تیارېـدۀ ، آماده کېدنه (۲)غټېدنه ، څربېدنه (۳)سنبالېدنه ، (۴)د امتحان د پاره مطالعه کونه ـ

**تیارېـــدُونکے** :- (ت + یـــا + رے + دُو+ ن + کـــے) [پ ، مـــف ، مـــذ ، وا ، ج: تیارېدُونکي (مؤ : تیارېدُونکې)] (۱)تیارے کووُنکے ،آماده کېدُونکے (۲)غټېدُونکے څربېدُونکے (۳)سنبالېدُونکے ، ډول سنګار کووُنکے (۴)د امتحان د پاره مطالعه کووُنکے ، تیارے کووُنکے ـ

**تیارېدۀ** :- (ت + یا + رې + دَه) [پ ، حمص] و ـــــ تیارېدنه ـ

**تیالکه** :- (ت + یا + ل+ که) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مؤ ، وا ج: تیـالکې] د خاورو کټوۍ ـ

**تېبُون** :- (تې + بُو+ ن) [پ ، اِس ، مذ ]تیمم ، هرکله چې اوبۀ موجودې نۀ وي نو د اودس په ځاے د لاسُونو دواړه پنجې په مزکه ټپ وهلے شي او بیا په مخ او په لاسُونو ترڅنګلو راکښلے شي ، نو د اودس ځاے اونیسي ـ

**تیپ** :- (تي + پ) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تیپُونه ]ټولے ، د فوځ قطار

**تیپچه** :- (ت +ې+ پ + چه) [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ]اهغه آلـه چې د بتېرانو یا مرزو د نیولو د پاره استعمالولے شي ، د دې نه د مرزو آواز وُباسلے شي ـ

**تیـت** :- (تـي + ت) [اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ] ګـډوډ ، خـورووړ ، پرېشانه ، نوستلے ، کړي پیرې ـ

**کول** :- (اَف) اص ، ګډوډ کول ، پرېشانه کول ، نوستل ، کړي پیرې کول ـ

**تیت کېدل** :- (اَف) اص ګـډوډ کېـدل ، پرېشـانه کېـدل ، نوسـتلے کېـدل ، کړي پیرې کېدل ـ

**تیتر**:- (تي+ ت + ر) [ ه ، اِس ، مذ ]تنځرے ، څنځرے ، یو خړ رنګے یا تور برګ مارغۀ

**تیتری** :- (تي + ت + رۍ) [ اَف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ]خرېړے ،خومبه ، دُورِنګ ـ

**تیتول** :- (تي + ت + ول) [ اَف: پ (قاموس )مص مت ]الوستل ، پرېشـانه کول ، خور وور کول ، ګډوډ کول ـ

**غل تیتول** :- (اَف)اص ، اوتې بوتې وئیل ، بکواس کول ، فضول رغېدل ـ

**تیتونګ** :- (تي + ت + و + ن + ګ) [اَف: پ (قاموس) حمص ]و ـــــ تیتونه ـ

**تیتونـه** :- (تي + ت + و + نـه) [ اَف: پ (قـاموس) حمص ]تیتونګ ، نوستنه ، پرېشانه کونه ، خورور کونه ، ګډوډ کونه ـ

**تیتووُنکـے** :- (تي + ت + وُو + ن + کـے) [اَف: پ (قـاموس) اِس فـاع ، مـد ، وا ، ج :تیتوونکي (مؤ: تیتـوُونکې) ] نوستووُنکے ، پرېشـانه کووُنکے ، خـور وور کووُنکے ، ګډوډ کووُنکے ـ

**تي تي** :- (تي + تي) [ پ ، اِس ، صو ]د چرګې چرګوړو د بللو آواز ، آآ کت کت

**کول** :- اص ، چرګې چرګوړي رابلل ، چرګو ته آآ کول ، کت کت کول ـ

**تي تي** :- (تي + تي) [پ (ب، خ) اِس ]ماشوم بل ماشوم ته تي تي وائي ـ

**تیتے** :- (تي + تے) [اَف: پ (قـاموس) اِس ، مذ ]د ماشومانو پـه ژبـه چرغوړے چُوزے ـ

**تیتېدل** :- (تي + تې + د +ل) [ اَف : پ (قاموس) مص لا ]ګډوډ کېدل ، خور وور کېدل ، پرېشانه کېدل ، کړي پیرې کېدل ـ

**تیتېـــدنګ** :- (تـــي + تـــې+ د + ن + ګ) [ اَف: پ (قـــاموس) حمـــص ] و ـــــ تیتېدنه ـ

**تیتېدنه** :- (تي + تې + د + نه) [ اَف : پ (قاموس) حمص ] تیتېدنګ ، تیتېدۀ ، ګډوډ کېدنه ، پرېشانه کېدنه ، خور وور کېدنه ـ

**تیتېدُونکے** :- (تي + تے + دُو +ن + کے) [ اَف : پ (قـاموس) مف ، مـذ وا ، ج: تیتېدُونکي (مؤ: تیتېدُونکې)]پرېشانه کېدُونکے ، خور وور کېدُونکے ، ګډوډ کېدُونکے ـ

**تیتېدۀ** :- (تي + تې + دۀ) [ اَف: پ (قاموس) حمص ] و ـــــ تیتېدنه

**تېڅل** :- (تي + تس+ ل) [ اَف: پ (قـاموس) مص مت ]برمـه کـول ، پـه برمې سُورے کول ـ

**تېڅلے** :- (تے + تس + لے) [ اَف پ (قـاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: تېڅلي (مؤ: تېڅلې)]برمه کړے ، په برمې سُورے کړے شوے ـ

**تېڅنه** :- (تي + تس + نه) [ اَف : پ (قاموس) حمص)]برمه کونه ، په برمې سُورے کونه ـ

**تېڅُونکے** :- (تـي + تسُـو + ن + کـے) [اَف: پ (قـاموس) اِس فـاع ، مـذ وا ، ج: تېڅُونکي (مؤ: تېڅُونکې) ]برمه کووُنکے ، په برمې سُورے کووُنکے ـ

**تېڅۍ** :- (تي + تس + ی) [ اَف: پ (قـاموس) اِس ،مؤ ]برمـه ، د سُوري کولو آله ـ

**تېځ** :- (تې + دز) [ پ (خ) اِس ، مذ ]زغل ، زغابنت ، منډه ـ

**تېځل** :- (تي + دز + ل) [پ (خ) مص مت ]زغل کول ، زغلـول ، پـه زغابنت کول ، تېزل ـ

**تېځلے** :- (تے + دُز+ لے) [پ (خ) مـف ، مـذ ، وا ، ج: تېځلي (مـؤ: تېځلې) ] زغلولے ، په منډه کړے ، زغابنت کړے ـ

**تېځنه** :- (تي + دز+ نه) [ پ (خ) حمص ]زغلونه ، په منډه کونه ، په زغابنت کونه ـ

**تېځُونکے** :- (تي + د+ زُو + ن + کے) [ پ (خ) اِس فـاع ، مذ ، وا ، ج: تېځـونکي ، (مـؤ : تېځـوُونکې )]زغولـوُونکے ، پـه منـډه کـووُنکے ، پـه زغابنـت کووُنکے ـ

**تیخـور** :- (تـي + خـو+ ر) [پ (ب ، خ) اِس ، مـذ ] (۱)خـارش، خاربنـت (۲)تـے رودُونکے ماشوم ، تیخورے ـ

**تیخورول** :- (تي + خو+ ر + و + ل) [پ (ب، خ) مص مت ]خاربنتول ، تخنول ـ

**تیخورونه** :- (تي + خو+ ر + و + نه) [ پ (ب، خ) حمص ]خاربنتونه، تخنونه ـ

**تیخوروُونکے** :- (تي + خو+ ر + وُو + ن + کے) [پ (ب، خ) اِس ، فـاع ، مذ ، وا، ج: تیخوروُونکي ، (مؤ: تیخوروُونکې) ] خاربنتوُونکے ، تخنوُونکے ـ

**تَیخورے** :- (تي + خو+ رے) [ پ ، اِس ص ، مذ ]تے رودُونکے ماشوم د مور پی ـ څنبوُنکے ماشوم ، تیخور ـ

**تِیخوري** :- (تي + خو+ ري) [ پ (ب ، خ) اِس ص ، مؤ ]خاربنتي ، خارشي ـ

**تیخورېـدل** :- (تـي + خـو +رې + د + ل) [ پ (ب، خ) مـص لا]خاربنـتېدل ، تخنېدل

**تیخورېدنـه** :- (تـي + خـو + رې + د + نـه) [ پ(ب، خ) حمـص ] تیخورېـدۀ ، خاربنتېدنه ، تخنېدنه ـ

**تیخورېدُونکے** :- (تي +خو +رے +دُو +ن +کے ) [پ (ب ، خ) مف ، مذ وا ، ج:

تیخوربدُونکي (مؤ: تیخوربدُونکې)خارښتبدُونکې ، تخنبدُونکې ـ

**تیخوربدهٔ** :- (تي +خو +رې +دهٔ) [پ (ب، خ) حمص [و ــــ یخوربدنه

**تېر** :- ( تې + ر) [پ ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا: تېره ، ج: تېرې ] (۱)پخوانی ، مخکښنی ، وړاندینی تېر یاران به نور ونهٔ وینې په سترګو که خوشحال وریسې دوه سترګې څلورکا(۲)دوکه ، ټګي ، (۳) زیات

پــه هـغـهٔ ساعـت مـدد شـه محمد

د ګناه پېتې مې دروند ترحده تېر دے (خواجه بنګش)

(۴)اوړېدلې ، لاړ ، په خوا کښې تېر شوے (۵)بنو: تور ، توررنګے

**پر تېر هېر پرهېر** :- مح، چې څهٔ شوي ، وړاندیني هېرول او د راتلونکو خیال ساتل

**تیر** :- ( تي + ر) [پ ، اِس ، مذ ، وا، ج: تیران ]شهتیر ، ښنترګاډر

**تېران** :- ( تې + را + ن) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]جائز ، روا.

**تیراه** :- (تي + را + ه ) [ پ ، اِس ،معرفه ]د افریدو علاقه

په ژړا د زړهٔ دمه کړ ګنه چوي

دے ودان دا پښنوریه دا تیراه (حمید بابا)

**تېر ایستل** :- ( تې + ر + اي + س + ت + ل) [ پ ، مص ]غُلول ، دوکه کول ، ټګل

**تېر ایستلے** :- ( تے + ر + اي + س +ت + لے ) [ پ ، مف ، مذ ، وا، ج: تېر ایستلي ، (مؤ : تېر ایستلې ) ] غُلولے ، دوکه کړے ، ټګلے

**تېرایستنګ** :- ( تې + ر + اي + س +ت +ن + ګ) [اَف : پ (قاموس) حمص ] و تېر- ایستنه ـ

**تېرایسته**:- ( تې + ر + اي + س + ت + نه ) [ پ ، حمص ]غلونه ، دوکه کونه ، ټګنه

**تېرایستونکے** :- ( تے + ر + اي + س + تو + ن + کے ) [ پ ، اس ، فاع ، مذ ، وا، ج: تېر ایستونکي (مؤ: تېر ایستونکې)] غُلوونکے ، دوکه کوونکے ، ټګونکے

**تیر بلی** :- ( تي + ر + ب + لی) [ اَف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ]هغه لرګي چې د مکان د چت نه د دېوال په سر باهر راوتي وي ـ

**تېر بوړے** :- ( تے + ر + بو + ړے ) [ اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ ،وا ج: تېر بوړي ]چار مغز

**تېر بُوزے** :- ( تے +ر + بو +زے ) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ] د ګنډون یو خاص قسم

**کول** :- (اف) اِص ، څهٔ څیز هسې سرسري پېوند کول ـ

**سره تېر بوزې کول** :- (اف) اِص (۱)دوه څیزونه هسې سر سري سره یو ځاے کول

(۲) څهٔ کار سرسري ډول باندې کول ـ

**تېر به**:- ( تې + ر + به) [ پ ، اس ، مؤ ، وا، ج: تېر بې]مُولی.

**تېر بېر** :- ( تې + ر + بې + ر) [پ ، ص ، مذ ](۱) وړاندې وروستو ، تېروبېر (۲) ټګي ټېري ، چل ول

یاران لري زرګونه د هر چا سره ساز باز کا

په قول په وعده څکه تېر بېر دي ښائسته (خوشحال)

**تېر سُونے** :- ( تې + ر + سو + نے ) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ وا، ج: تېر سُوني ]جُوټه ، پاتې شوے خوراک ، پس خورده ـ

**تېر غمال** :- ( تې + ر + غ + ما + ل) [ اف: پ (قاموس) اِس ، مذ مؤ ، وا: تېر غماله ، ج: تېر غمالے )ظالم ، ظلم کار ـ

**تېر غمل** :- (تې + ر + غ + م + ل) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]تېر غمے ، ظلم ، زور ، زیاتے ـ

**کول** :- (اف) اِص ، ظلم کول ، زور زیاتے کول ـ

**کېدل** :- (اف) اِص ، ظلم کېدل ، زور زیاتے کېدل ـ

**تېرغمے** :- ( تې + ر + غ + مے ) [ اف: پ (قاموس) اِس ،مذ ]و- تېرغمل

**تیرک** :- ( تي + ر + ک) [پ ، اِس ، مذ ، وا، ج: تېرکونه ]د مېچنې په لاندې پل کښې د اوسپنې سیخ چې پورتنے پل د هغې د پاسه ګرځي ـ

**تیرکښ** :- ( تي + ر +ک + ښ) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا، ج: تیر کښونه ] (۱)د مویخانو یا کشمشو کښېښولو د کوټې سُوري (۲) د قلعې یا د برج سُوري

**تېرکی**:- ( تې + ر + ک +ی) [ پ (ظفر) اِس ،مؤ ]څنګل ـ

**تېرګه** :- (تې + ر +ګه) [ اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا، ج: تېرګې] (۱)هغهٔ دېوال چې د مکان د یوې حصې د بېلولو د پاره جوړ کړے شوے وي (۲) هغه تسمه چې پیاړمه پرې تړلې شي ـ

**تیرلک** :- ( تي + ر + ل + ک) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]برچکے ، نېزکے ـ

**تېرمتے** :- ( تے + ر + م + تے) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ وا، ج: تېرمتي (مؤ: تېرمتې) ]یو قسم اس چې په فارسی کښې تیتے ورته وائي ـ

**تېرنه** :- ( تې + ر + نه) [ اف: پ (قاموس) اِس ،مؤ ](۱)معافي ، عفو ، (۲)ظلم ، زیاتے ـ

**کول** :- (اف: اِص (۱)عفو کول ، معاف کول (۲)ظلم کول ، زیاتے کول ـ

**تېرو** :- ( تې + رُو) [ اف: پ (قاموس) ص ، مذ]ظالم ، زور زیاتي کوُونکے ـ

**تېرواتهٔ** :- (تې + ر + وا + تهٔ) [ پ، اِس ، مؤ ]تېروتنه ، خطا کېدنه ، دوکه خوړنه

**تېروار** :- ( تې + ر + وا + ر) [پ ، اِس ص ، مذ ]تېرځل ، تېر وخت

**تېروبېر** :- ( تې + ر+و + بې + ر) [ پ ، ص ]و- تېر بېر

ساه مې تېر وبېر شي نهٔ په ښکته ځي نهٔ پورته

لـړ چـې مـې له یادو د یار یاد شي تېر وبېر (حمید)

**تېروتل**:- ( تې + ر + و + ت + ل) [ پ ، مص ]خطا کېدل ، دوکه خوړل

تــهٔ پــه خـبره پــه خندا تېـروې

ستا په وعده مې تېروتل زده کړل (حمزه شینواري)

**تېروتلے** :- ( تې + ر + و + ت + لے) [ پ ، مف ، مذ ، وا، ج: تېروتلي ، (مؤ: تېروتلې )خطا شوے ، غلط شوے ، دوکه شوے ـ

**تېروتنګ** :- ( تې + ر + و + ت + ن + ګ) [اف: پ قاموس) حمص ] و ـ تېروتنه ـ

**تېروتنه**:- ( تې + ر + و + ت + نه) [ پ ، حمص ]تېروتنګ ، دوکه خوړنه ، خطا کېدنه ، غلطېدنه ـ

**تېروتونکے** :- ( تې + ر + و + تو + ن + کے) [پ ، مف ، مذ ، وا ،ج: تېروتونکي (مؤ: تېروتونکې) ]خطا کېدونکے ، دوکه خوړونکے ، غلطېدونکے ـ

**تېروتے** :- (تې + ر + و + تے) [ پ اس ص ، مذ ، وا، ج: تېروتي (مؤ:تېروتې)] خطا شوے ، دوکه شوے غلط شوے ـ

**تېرورے** :- ( تې + ر + و + رے) [ اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ] هغه سامان یا بار چې د کوچ کولو نه وړاندې بل پړاؤ ته لېږلے شي ـ

**کول** :- (اف)اِص ، د کوچ کولو نه وړاندې بل پړاؤ ته څهٔ سامان د دې د پاره لېږل چې د کوچ په وخت بار ورته کم شي ـ

**کېدل** :- (اف) اص ، د کوچ کولو نه وړاندې بل پړاؤ تـه څـهٔ سامان لېږلے کېـدل چې د کوچ په وخت بار ورته کم شي۔

**تبرول** :- ( تې + ر + و + ل) [ پ ، مص ](۱)زغمل ، پېڅل ، برداشت کول۔

چې حاذق طبیب حاضر دارو پرې نهٔ کړي

درپـوهـېـږم رنـځ بـه تـبر کړې لاعلاجه (مرزا انصاري)

(۲)خوړل ، دمرې نه څهٔ ځیز ښکته کول (۳)پرسول ، بلاربـول ، حامله کول

(۴)وخت اړول ، وخت ته دیکه ورکول (۵)تېرهٔ کول ، دارتېزول۔

تـهٔ چـې تـوره تـېـروې زهٔ در پـوهـېـږم

د حمید خو نه په مخکښې د سېلاب شوه

(۶)سبق لوستل۔

**تړله تبرول** :- (اف) اص ، جوړه کول ، صلح کول۔

**تبرون** :- ( تې + رو + ن ) [ اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ](۱)گذار ، وار (۲)ظلم ، زیاتے۔

**تبرونګ** :- ( تې + ر + و + ن + ګ ) [ اف: پ (قاموس ) حمص ]و ـــــ تبرونه۔

**تبرونه** :- ( تې + ر + و + نه ) [ پ ، حمص ](۱)تبرونګ ، زغمنه ، برداشت کونه (۲)خوړنه ، د مرې نه څهٔ ځیز ښکته کونه (۳)وخت اړونه ، وخت تـه دیکـه ورکونه (۴)بلاربونه ، پړسونه ، حامله کونه (۵)تېرهٔ کونه ، دار تېزونه (۶)سبق لوستنه۔

**تبروُنے** :- (تې + رو + نے ) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: تبروُني (مؤ: تبروُني)]ملګرے ،زړهٔ ته نژدې ، اشنا۔

**تبروُونکے** :- (تې + ر + وُو + ن + کے ) [پ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: تبروُونکي (مؤ: تبروُونکې)](۱)زغموُنکے ، برداشت کوُونکے (۲)خوړونکے ، د مرې نه څهٔ ځیز ښکته کوُونکے (۳)وخت اړوُونکے ، وخت ته دیکه ورکوُونکے (۴)بلاربوُونکے ، حامله کوُونکے (۵)تېرهٔ کوُونکے ، دار تېزوُونکے (۶)سبق لوستُونکے۔

**تَیروے** :- (تې + ر + وے ) [ پ ، اِس، مذ ، وا ، ج: تَیروي (مؤ: تیروې) ] تیخور، تے خور ، د مور پېٔ رُودونکے۔

**تېرهٔ** :- (تې + رهٔ) [پ ، ص ، مذ (مؤ وا: تېرهٔ ، ج: تېرې)](۱)تېز

د مـرزا خـبـرې نـرمې تر اوبهٔ وي

او تېرهٔ پرې ظالمانو تر شمشېرشي (مرزا انصاري)

(۲)زړهٔ ور ، تکړه (۳)چالاک ، تېز ، تُند ، چست (۴)پوهه ، هوښیار۔

**تلل** :- اص (۱)چاخ چاخ تلل ، تېز تېز او ګړندے تلل ، (۲)بېدار تلل (۳)په غُصه کښې تلل۔

**کتل** :- اص (۱)ځېر ځېر کتل ، (۲)په غصه کښې کتل ، په برګو سترګو کتل۔

د ښو څوکې ئې نېغې ځي تر زړونو

چـې تـېـرهٔ تـېـرهٔ کاتهٔ کا لکه بازې (خوشحال)

**کول** :- اص ، تېزول ، تېرول ، تېز کول۔

**کېدل** :- اص ، تېزېدل ، تېز کېدل۔

**تېره** :- ( تې + ره ) [ پ ، ص ، مؤ ](۱)تېره شـوے ، وړانـدینۍ (۲)بلاربـه ، حامله ، (۳)تللے ، تلے۔

**چار** :- اص ، شوے کار ، تېر شوے وخت

تېره چار به د هېچا په لاس رانهٔ شي

کـه په ډېره ژړا سرهٔ دواړه لېمه کړم (خوشحال)

**تېرهٔ توب** :- ( تې + ره + تو + ب) [پ ، اِس ، مذ](۱)تېرهٔ والے ، تېزي ، چُستي ، چالاکي (۲)هوښیاري ، پوهه (۳)تکړه توب ، باتوري۔

**تېره شپه** :- ( تې + ره + ش + په ) [ پ ، اس ص ، مؤ ، وا ، ج: تېرې شپې )] برنۍ شپه ، بېګانۍ شپه ، تېره شوې شپه۔

**تېرهٔ والے** :- ( تې + ره + وا + لے ) [پ ، اِس ، مذ]و - تېرهٔ توب۔

**تېره ورځ** :- ( تې +ره + و + ر + وز) [پ ، اِس ص ، مؤ ، وا ، ج : تېرې ورځې ]تېره شوې ورځ ، پرونۍ ورځ۔

**تیرۍ** :- ( تې + رۍ ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]داینډې یا تتې په لوبه کښې د منډې په وخت یو بل طرف ته پېرونه خوړل۔

**تبرے** :- (تے + رے ) [ پ ، اِس ، مذ ](۱)ظلم زیاتے

په غرور د توان تېرے په ناتوان مه کړه

چـې د منهٔ توله سپکېږې په سبر ګوره (حمید)

(۲)زیاتوالے ، ډېروالے

چې شونډو ته دې ګورم ترياقوتو لا تبرے کا

چـې زلـفـو تـه دې ګورم په عنبرو معنبر ئې (خوشحال)

**کول** :- اص ، ظلم کول ، زور زیاتے کول۔

**تبرے** :- (تے + رے ) [ پ، ص ، مؤ ، ج ]تیارې ، تورتم

تل دې وي فراق د زړهٔ داغونه پرې ژوندي وي

ژونـد خو وي د ستورو په تېرو باندې موقوف (حمزه شینواري)

**ورځې شپې** :- اص ، تېر وخت ، تېره شوې زمانه۔

**تېرېدل** :- ( تې + رے + د + ل) [ پ ، مص ](۱)تلل ، خوارېدل

پـه خـړه لاره خـړه تېرېدل ګران دي

په دا هسې لار به څو وړې درنه څته (مرزا انصاري)

(۲)قربانېدل ، زارېدل

مرزا په جمع زړهٔ تر ځان تېرېږي

پـه لـغـت د تـېـرېدو معني روا

(۳)بلاربېدل ، حامله کېدل (۴)زغملے کېدل ، برداشت کېدل ، اوړېدل

تهٔ چې پوښتنه کړې له ما چې په ما څهٔ تېرېږي

خود له ناکامه درته وایم چې ژوند ښهٔ تېرېږي (مطیع الله قریشي)

(۵)څهٔ ځیز د مرې نه ښکته کېدل

په هجران کښې به مې تېر له حلقه نهٔ شي

کـه وخُـلې وتـه مـې ګوټ د زلال پر بوت (حمید)

(۶)مړ کېدل ، د ژوند اوربشه ختمېدل۔

**اوبهٔ د ستوني نه نهٔ تېرېدل** :- اص ، ډېر غمجن کېدل ، زیات فکر اخستـل د ډېر غم د کبله اوبهٔ د مرۍ نه نهٔ ښکته کېدل۔

**اوبهٔ له ورخه تېرېدل** :- اص ، موقع د لاس نه وتل۔

**باد تېرېدل**:- اص (۱)ګوزن وهل (۲)باد الوتل۔

**پر تېرېدل** :- اص (۱)د ځناور بلاربېدل (۲)د څهٔ ځیز د پاسه تلل (۳)لوستل۔

**په خوا خاطر کښې نهٔ تېرېدل** :- اص (۱)په ګمان کښې نهٔ راتلل (۲)د فکر نه بېخي وتل ،هېرېدل۔

**ترجهان تېرېدل** :- اص ، مړ کېدل ، تر دنیا تېرېدل ، د ژوند اوربشه ختمېدل

**تر دنیا تېرېدل** :- اص و-ترجهان تېرېدل۔

**تړله تېرېدل** :- (اف) اص خپلـو کښـې سـره تېرېـدل ،د یـو بـل نـه داسـې اوړېدل چې سره ونهٔ وینې۔

**تر وعدې تېرېدل** :- اص ، وعده نهٔ پوره کول ، بې لوظي کول

تهٔ خو بيا هم په خپله وعده تېر شوې
كوم شرطونه وې چې نهٔ مې اومنل زړهٔ (مطيع الله قريشي)

**جنګ تېرېدل** :- اص ، جنګ ختمېدل ـ

**ځينې تېرېدل** :- اص (۱)څهٔ څيز د مرى نه ښكته بې وسه تلل (۲)د چانه وړاندې كېدل ـ

**څهٔ تېرېدل** :- اص ، څهٔ واقعه تېرېدل ـ

**دُنيا سختې نرمې تېرېدل** :- اص ، د دُنيا سختى او كړاكونه زغمل ـ

**دُنيا نه تېرېدل** :- اص و - تر جهان تېرېدل ـ

**د سر نه تېرېدل** :- اص ، د سر نه دانګل ، مقابلې ته ملا تړل او د نتيجې پروا نهٔ كول

**دعُمر شپې ورځې تېرېدل** :- (اف) اص ، موقع د لاسه وتل ـ

**وار تېرېدل** :- اص (۱)د خپل وار نمبر تېرېدل (۲)وارخطا كېدل (۳)مړ كېدل (۴)ارمانې پاتې كېدل ـ

**وخت تېرېدل** :- اص (۱)وخت اوښتل (۲)بوډا كېدل (۳)موقع د لاسه وتل (۴)مړ كېدل ـ

**تېرېدنګ** :- (تې +رې +د + ن +ګ) اف: پ (قاموس) حمص ]و -تېرېدنه ـ

**تېرېدنه** :- (تې + رے + د+ نه) [ پ ،حمص ](۱)تېرېدنګ ، تېرېدهٔ ، تلنه (۲)زارېدنه ، قربانېدنه (۳)بلاربېدنه ،حامله كېدنه (۴)برداشت كېدنه ، زغملے كېدنه ، اوړېدنه (۵)څهٔ څيز د مرى نه ښكته كېدنه (۶)مړ كېدنه ـ

**تېرېــدُونكے** :- (تــې +رې + دُو + ن + كــے ) [پ ، فــاع ، مــذ ، وا ، ج: تېرېدُونكي (مؤ: تېرېدُونكې)](۱)تېرېدُونے ،تلونكے ، اوړېدونكے (۲)زارېدُونكے ، قربانېدُونكے (۳) برداشت كېدُونكے ، زغملے كېدُونكے (۴)څهٔ څيز د مرى نه ښكته كېدُونكے ، (۵)مړ كېدُونكے ـ

**تېرېدُونے** :- (تے + رے + دُو + نے) [ پ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: تېرېدُوني ، (مؤ: تېرېدُونې)]و - تېرېدُونكے ـ

**تېرېدهٔ** :- (تې + رې + دهٔ) [پ ، حمص ]و - تېرېدنه ـ

**تېرېږه** :- (تې + رې + ږه يا ګه) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]تريږه ، يو بُوټے

**تېرسو** :- (تې + ر + سو) [پ (ق) اس ، عدد ]درې سوه ـ

**تېرايستل** :- (تې + ر + ي + س + ت + ل) [پ ، مص مت ] و ــــ تېرايستل

**تېز** :- (تې + ز) [ فا ، ص ، مذ ](۱)چاخ ، چُست ، چابک ، تُند (۲)چالاک ، هوښيار ، پوهه ،(۳)تېرهٔ

مــاوې غــوځ به غر د هجر كړم له وېخه
تېز مې نهٔ كه د وصال سوهان لوهاريځ (بېدل)

(۴)زور ، فرق

شاه سكندر وو چې بادشاه د بحروبر وو
ګوره حال ئې څهٔ شو روره وكړه نظر تېز (خواجه بنګش)

**تېز پر** :- اص ، تېزوزرے ، تېز الوتُونكے ، تېزه غوټه وهونكے

كه د ژمي په وخت ښې نيسي بټېرے
تــر بــاښــې نــه هــغــه بــاز ګنه تېز پَر (خوشحال)

**تاثير** :- اص ، اثري ، زراؤ ، ډېر اثر كوُونكے

تېز تاثير لري تر ښو صحبت د بدو
دا خــبــره آزمــوده ده پــه بــيا بيا (حميد)

**تېزې سترګې** :- اص ، تېرې سترګې ، خمارې سترګې ، خونې سترګې ـ

حېران يم د كمترې دې د باز كه د شاهين
زړګے په يو نظر سره وړي تېزې سترګې ستا (حمزه شينواري)

**تېز** :- (تې + ز) [ پ ، اس ، مذ وا ، ج: تېزُونه ]تيز ، باد ، ټرټ ، تيغ

**اچول** :- اص (۱)باد پربښول ، تيز اچول ، تېز ويستل (۲)پړه منل ماتې قبلول (۳)په څهٔ كار كښې پاتې راتلل (۴)وعده نهٔ پوره كول ، لوظ نهٔ پوره كول ـ

**پُوسكې** :- اص ، وړه خبره ، معمولي خبره ـ

**په ډېلۍ نهٔ ماتېدل** :- اص ، ډېر مغروره كېدل ، په هوا كښې ګرځېدل ، كبر كول ، ځان په څهٔ كښې شمارل ـ

**ويستل** :- اص ، باد ايستل ، په ښه شان پړ كول ـ

**ويشتل** :- اص و -تيز اچول ـ

**تېزاب** :- (تې +زا + ب) [ فا ، اس ، مذ ]يو قسم سخت عرق چې سرې پرې سوځي ، يو كيميائي مركّب چې خوند ئې ترش وي ـ

**تېزارتے** :- (تې + ز + ا + ر + تے ) [ اف: پ (قاموس) اس ص ، مذ وا ، ج: تېزارتي (مؤ: تېزارتې ](۱)تيزن ، تيز اوښ(۲)ډارن ، يرندونكے ، ښځونک

**تيزاوښ** :- ( تې +زا + و + ن + ښ) [ پ ، اس ص ، مذ (مؤ ، وا ، تيزاوښه ج: تيزاوښې )]و - تيزارتے ـ

**تيز بيز** :- (تې + ز + بې + ز ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]د شپشتو يا ببړ يو يوه لوبه ـ

**تيز تيزكو** :- (تې + ز + تې + ز + كو) [ تيزدكو ، يوه ګونګټيى چې ماشومان ئې راونيسي او په خپل لاس تيزونه پرې اچوي ]

**تيزدكو** :- (تې + ز + د +كو) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]يو قسم تور چېنجے چې تكي تكي وي ـ

**تېز رفتار** :- (تې + ز + ر + ف + تا + ر) [ فا ، اس ص ، مذ (مؤ ، وا: تېز رفتاره ، ج: تېز رفتارے )]چاخ ، چابک ، ګړندے ، تېز پند كوُونكے ، زر زر تلوُنكے ـ

**تېز رګ** :- ( تې + ز + رَ + ګ) [ پ ، اس ، مذ ]د پښې هغه رګ چې په تيېنګونو زيات خوږېږي او اكثر چې زور وركړے شي نو بنده بې وسه شان تيز واچوي ـ

**تېزګي** :- ( تې + ز +ګي) [ اف: پ (قاموس) ص ]په روانۍ سبق وئيل ، په مخه لوستل تېزه ـ

**تېزل** :- (تې + ز + ل ) [ اف: پ (قاموس) مص مت ]و ـــــــ تېځل ـ

**تېز مزاج** :- ( تې + ز + م + زا + ج) [ فا ، اس ص ، مذ ،(مؤ ، وا: تېز مزاجه ، ج: تېز مزاجے ] غُصه ناک ، قهرجن ، د طبيعت سخت ـ

**تيزن** :- (تې + ز + ن ) [ پ ، اس ص ، مذ (مؤ ، وا: تيزنه ، ج: تيزنې )] و ـــــــ تيز ارتے ـ

**تېزندے** :- (تې + ز + ن + دے ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: تېزندي ] هغه پړے چې د چا د مرى د خپه كولو د پاره غاړې ته وراچولے شي ـ

د زړهٔ قبر كښې مې مړے آرزو ژوندے شي
د مــاضــي يــاد مــې مــرى ته تېزندے شي (ميا ظفر كاكا خېل)

**تېزه** :- (تې + زه) [ اف: پ (قاموس) ص ]و ــــــــــ تېزګي ـ

**تېركه** :- ( تې +ژ +كه يا +ګ +كه) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: تېركې ]د لرګي يوه پلنه او هواره ډېلۍ ـ

**تېره** :- ( تې +ژه يا ګه) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تېرې ] (۱) كاڼے ، چمه ، غرمه ، ګټه (۲)بندېز ، چمه ، غرمه ګټه (۲)بندېز ـ

**اړول** :- اص (۱)کاڼي په بل مخ کول ، ګټه اړول (۲)څۀ لوے کار کول (۳)د چا داسې کار کول چې د هغۀ نه ئې څۀ طمع نۀ وي ، نو په داسې وخت کښې وائي چې تیږه اړول پکار دي ۔

**ایښـودل** :- اِص (۱)ګټـه کښېښـودل ، کـاڼي کښېښـودل (۲)د پښتنو پـه ملک کښې د دوۀ مخالفو ډلو په مینځ کښې د څۀ وخت د پـاره جنګ بند کـول ، که څوک د تیږې په دوران کښې دښمن نه نقصـان ورسوي نو هغـه ټول قوم مجرم شي

**پـر خبره ایښودل** :- اِص ، پـه خبره تیږه ایښـودل ، خبره غلي کـول ، معامله سړول

**ماتول** :- اص ، د قام فیصله ماتول جنګ شروع کول

آخر بـه تیږه کړې زما او د رقیب ماتـه
تۀ ورسره چې کله جنګوې ستر ګې (حمزه شینواري)

**په خبره تیږه ایښوودل** :- اِص ، و - تیږه پرې خبره ایښودل ۔

**تېزي** :- ( تې + زي ) [ پ ، اس ، مؤ ](۱)چستي ، چاخ والے ، چابکتوب ، تُندي ، تېزوالے (۳)سخت مزاجي (۳)زیات والے (۴)ګراني ۔

**تېزي** :- ( تې + زي ) [ پ (خل) اِس ، مؤ ]سورلي

**تیس مار خان** :- ( تي + س + ما + ر + خا + ن ) [ اُر اس ص ، مذ ]
د طنز په ډول د هغـه سړي د پاره وئیلے شي ، څوک چې په اصل کښې تکړه نۀ وي خو ځان په باتورانو کښې حسابوي ۔

**تیس مارخاني** :- ( تي + س + ما + ر + خا + ني ) [ پ ، اس ، مؤ ]
د تیس مار خان خوي ، باتُوري ، ځان ښودنه ۔

**تېسه** :- ( تې + سه ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: تېسې ](۱) پـه خرڅ کښې تنګي (۲)ګټه (۳)زیاتوالے (۴)ټګي ۔

**تېش** :- ( تې + ش ) [ اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: تېشُونه ] د کَرکې یا سپارې څوکه ۔

**تېش خولے** :- ( تې + ش + خ + و + لے ) [ اف پ (قـاموس) اس ، مذ ] اوچتـه شان ټوپۍ ۔

**تېشـن** :- ( تې + ش + ن ) [ اف: پ (قـاموس) ص ، مـذ (مؤ ، وا: تېشـنه ، ج: تېشنې ] چېشن هغه څوک چې وېښتۀ ئې لوے لوے وي ۔

**تېشـه** :- ( تې + شـه ) [ فـا ، اِس ، مـؤ ، وا ، ج: تېشـې ]ترښـځ ، تېشـې ، د ترکاڼانو او راجګـانو یـو اوزار چې لـرګـے پـرې تـوږلې شـي یـا خښـتې او کاڼي پرې تراشلے شي ۔

نـامـور بـه پـه جهـان شي تـر شیریني
که تېشه ورکړي یو دم وخپل کوهکن ته (کاظم خان شیدا)

**په تېشه تندے دوه نیم کول** :- مح تندے ماتول

زۀ فـرهـاد یـم لـه شیریني به وانۀ وړم
که تندے مې څوک دوه نیمه په تېشه کا (خواجه بنګش)

**په تېشه ځان مړ کول مح** :- (۱)په تېشه ځان وژل ،(۲)قرباني ورکول

د فرهاد غونډې صادق بو به په مینه
چې پـه یار پسې ځان مړ که په تېشه (کامګار خټک)

**وځان ته تېشه وهل** :- (اف) مح ، خپل ځان ته ګټه کول ، ځان ته ترښځ وهل ۔

**تېښت** :- ( تې + ش + ت+ یـا تې+ خ+ ت ) [پ ، اِس ، مـذ ]زغـل ، تېښتـه ، منډه

ستا د زلفو هیبت باد په تېښت روان کا
د ښـامـار پـه دود چـې وښوري ناګاه (کاظم خان شیدا)

**تېښته** :- ( تې + ش + ته یا تې+ خ+ ته ) [ پ ، اِس ، مؤ ] و ـــــــ تېښت ۔

**کول** :- اص ، زغلېدل ، منډه کول ، پښې ویستل ، پښې سپکول ، دوه خپلې دوه پردۍ کول ۔

**تېغ** :- ( تې + غ ) [ فا ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تېغُونه ] تُوره ، خنجر

که عاشق د یار په تېغ مري
پـرې مـنـت د ے د یـار لا (خوشحال)

**تېغ** :- ( تې + غ ) [ پ ، اِس ، مذ وا ، ج: تېغُونه ] نوغ ، تازۀ ټوکېدلے بوټے ، تېغنه ۔

**وهل** :- اص ، نُوغ راوتل ، بُوټے راټوکېدل ، د بُوټي سر وهل ۔

**تېغ بندي** :- ( تې + غ + بَ + ن + دي ) [ پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: تېغ بندۍ ]هغـه تعویـذ چې خلق ئې پـه عامـل بانـدې لیکـي چې پـه دۀ د تېـغ یاګولۍ اثر نۀ کېږي

**جوړول** :- اص ، تېغ بندي لیکل ، چاته داسې تعویـذ لیکـل چې په هغۀ بیـا د تېغ یا ګولۍ اثر نۀ کېږي ۔

**لیکل** :- اص و- تېغ بندي جوړول ۔

**تېغنـه** :- ( تـې + غ + نـه ) [ پ ، اِس ، مـو ، وا ، ج: تېغنـې ](۱)تیـغ ، نـوغـے (۲)تېغـے ، د اوسپنې تېې ۔

**تېغنه** :- ( تې + غ + نه ) [ پ ، (دوړ) اس ]کګوړے ، د ریکاټي باجې ریکارډ ۔

**تېغـون** :- ( تـې + غـو + ن ) [ پ ، اِس ، مـذ ](۱)روڼ ، چـڼ کېـدُونکے ، ځلېدُونکے

زړۀ ربېي چې په څنګ کښېني په څنګ ګوري
لـړوړي سم د تـېغون څېز ډېر ئې څنګزن وړي (علیخان)

(۲)یو قسم باز

چې په لاس به ئې تېغون بازُونه ناست وو
اوس ئـې ځـا ے د ټـپـوسیورې په څلیو (سکندر خان خټک)

**تیـک** :- ( ت + ي + ک ) [ اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ (مؤ وا تیکـه ج: تیکې)](۱)نېغ ، اوچت (۲)څرګند ، بلنګ ، ښکاره ، جوت

**کول** :- (اف) اص (۱)نېغول ، اوچتول (۲)څرګندول ، جوتول ، ښکاره کول ۔

**کېـدل** :- (اف) اص (۱)نېغېـدل ، اوچتېـدل (۲)څرګند ېـدل ، جوتېـدل ، ښکاره کېدل ۔

**تیکړک** :- ( ت + ي + ک + ړ + ک ) [ اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]یو قسم زاڼې چې پښې ئې لوے ، دنګې او توري وي ۔

**تېکه** :- ( تې + که ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تېکې ](۱)څنګزن ، راځورند (۲)تېکے ، د تُورې یا د چاړې نیام یا غلاف ، چړتون

**تېکے** :- ( تې + کے ) [ پ ، اِس ، مذ وا ، ج: تېکي ]تېکه ، چړتون

**په یو تېکي کښې دوه تورې نۀ ځائېدل** :- مـح ، دوه بادشاهان پـه یـو ملک کښـې نـۀ شـي پـاتې کېـد ے ، د مختلفـو خیـالاتو او طبیعتونـو دوه کسان په یوه خبره اتفاق نۀ شي کولے ۔

**توره په تېکي کښې اچول** :- مح ، (۱)تُوره نیام ته اچول (۲)جنګ بندول.

**توره د تېکي نه ویستل** :- مح ، (۱)توره د چړتون نـه رایستـل ، (۲) جنګ تـه تیارېدل ، انښتې ته متې نغښتـل ۔

**تېکیر** :- ( تې + کي + ر ) [ اف: پ (قـاموس) اس ، مذ ](۱)پـه سر کښـې سپېږې او وریچې لټـول (۲)د بُغـض او کینـې لـه کبلـه چاتـه پـه بـدو ستر ګو کتل

(۳)تحقیق ، څېړنه ، لټون ۔

**تېکرکول** :- (اف) اص ، د عداوت او کینې له کبله چاته په بدو سترګو کتل ۔

**په تېکیر کښې کېدل** :- (اف) اص، دښمن کېدل، د دښمنۍ له کبله په چا پسې کېدل۔

**تېګوغے** :- ( تې + ګو + غے ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]یو قسم ډوډۍ۔

**تېګا** :- ( تې + ګا ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ](۱)تیګه، ساه لنډے ، ساه بندي (۲)زغم

**وهل** :- (اف) اص ، ساه لنډه لنډه کېدل۔

**تېل** :- ( تې + ل ) [ پ ، اس ، مذ ](۱)غوړ ، روغن چې د شړشمو ، کنځلو یا نور داسې قسم تخمونو نه ویستلے شي

تېل د اوښکو مې ډېوه کړه دنیا زبله
څـکـه شـوه جرګه د ترکو په ما پنډه (بېدل)

(۲)پټرول (۳)د خاورو تېل

**تېل اچول** :- اص ، په موټر یا لارۍ کښې پټرول اچول ، د تېلو نه ډکول۔

**اُوباسل** :- اص (۱)د شړشمو یا کنځلووغېره نه تېل ویستل (۲)ځوک خولې خولې کول ، ډېر زیات سترے کول ، تېل ویستل (۳) د مزکې نه پټرول راویستل۔

**بندول** :- اص ، د انجن د څۀ فني خرابۍ په وجه پټرول نۀ پرېښول او د ګاډي اودرېدل۔

**لګول** :- اص (۱)تېل په سر مښل (۲)خوشامنده کول (۳)د مشین پُرزې په تېلو غوړول۔

**ورکول** :- اص (۱)خوشامنده کول (۲)دوکه کول ، ټګېیل (۳)د مشین پُرزې په تېلو غوړول۔

**ویستل** :- اصو تېل ــــــ اوباسل

**تېلپکه** :- ( تې + ل + پ + که ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ وا ، ج: تېلپکې ]د پښتنو یو خاص قسم ټوپۍ یا خولۍ

**تېلو** :- ( تې + لو ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]هغه کڅوړه یا په ختېه لړلې کپړه چې د لنګ مال غلانځې ته ئې دې د پاره اچوي چې بچے پې ونۀ روي

**تېله** :- (تې + له ) [ پ ، ه : تهېلا اس ، مؤ ، وا ، ج: تېلے ]کڅوړه ، بوجۍ۔

**تېله** :- (تې + له ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: تېلے ]د تلې ګونجې۔

**تېلۍ** :- (تې + لۍ ) [ پ ، ه د تهېلي ، اس ، مؤ ]همیاني ، کڅوړه ، بوجګۍ۔

**تیلۍ** :- ( تې + لي ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ](۱)د هندوانې ترازه یا پره ډلۍ (۲)د ګوګړ کانړے۔

**تیلے** :- (تې + لے )[ پ ، اس ، مؤ ]اور لګیت ،د ماچس تیلے ، تیلے

**تیلے** :- ( تې + لے ) [ پ ، اس ، مذ وا ج: تیلي ](۱)اورلګیت ، تیلے (۲)چخچے

**بلول** :- اص ، ماچس لګول اور لګیت بلول ، اوربلول ، تیلے لګول۔

**لګول** :- اص و ــــــ تیلے بلول۔

**تیلے** :- (تي + لے ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]د کاربز ډنډ

**تېلي** :- (تې لي ) [ پ ، اس ، مذ وا ، ج: تېلیان (مؤ ، وا : تېلې ج: تېلیانې )] تېل ویستونکے ، د تېلو کسب کُوونکے۔

**تیمار** :- (تي + ما + ر ) [ فا ، اس ، مذ ]د بیمار خدمت

توان طاقت د مچ شړل ورځخه نۀ وو
پـه ساتـن ه بـه ئې مور کاوۀ تیمار (خوشحال)

**تیماردار** :- (تي +ما +ر +دا +ر ) [فا ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: تیمار داران (مؤ وا: تیمـارداره ج: تیمـار دارې )](۱)د بیمـار خـدمت کـوُونکے (۲)د بیمـار تپوس کوُونکے۔

**تیمارداري** :- ( تي + ما + ر + دا + ري ) [فا ، اس ، مؤ ](۱)د بیمار خدمت (۲) د بیمار پوښتنه یا تپوس۔

**کول** :- اص (۱)د بیمار خدمت کول (۲)د بیمار تپوس کول۔

**تیمبُوزک** :- ( تي + م + بُو + زَ +ک ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) تینبُوزک ، تربُوزک ، مول ، کچُیز ، ګډ بز ، (۲)کورے۔

**تیمبُوزے /تنبوزے** :- (تي + م + بو + زے ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ] تنبُوزے ، تربُوزک ، وهنه۔

**تیمچه** :- (تي + م + چه ) [ اف : پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: تیمچې ] مشکے ، هغه کڅوړه شان چې د قالین د ټکړې نه جوړه وي او په کلو کښې د ناوې سامان سره ورکولے شي۔

**تیمّم** :- ( ت + ي + م + م + م ) [ ع اس ، مذ ] و ــــــ تېبون۔

پـه سـبـب د ډېـره ډېـره تـیمّم
همېشه ئې سپېره رېږه په تراب وي (رحمن)

**وهل** :- اص ، تیمّم کول ، تېبون کول۔

چېرته لپې لپې اوښکې چېرته صبر
تـیـمّم واهـۀ پـه غـاړه د رود نۀ شي (حمید)

**تېمور** :- ( تې + مو + ر ) [ تُر ، اس ، مذ ](۱)فولاد ، پولاد (۲)یو مشهور بادشاه چې په پښه ګډ وو ، ځکه به ورته خلقو تېمورلنګ ویل۔

**تینبُوزک** :- ( تي + ن + بُو + زَ + ک ) [ اف پ (قاموس) اس ، مذ ]و ــ تیمبُوزک

**تینبُوزے** :- ( تي + ن + بُو + ز + ے ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]و ــ تیمبُوزے

**تینتغي** :- ( تي + ن + ت + غي ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]شینتېپۍ ، چکۍ ، یوه برګه شان مرغۍ۔

**تین تېرک** :- ( تي + ن + تې + ر + ک ) [ اف : (قاموس) اس ، مذ] بمبیرک ، ستن۔

**تینتینه** :- ( تي + ن + تي + نه ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ وا ، ج: تینتینې ] یو قسم مرغۍ۔

**تینداره** :- (تي + ن + دا + ره ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تینډارې ] تندیار، د ترۀ ښځه

**تینډک** :-( تي + ن + ډ + ک ) [ پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: تینډکونه ] ټکره ، ډغره ، تنبېدنه

پام په هر ګام شته صُراحي او پیالې
دا مـېـخانـه لـه تـینـډکو ډکه ده (حمزه شینواري)

**خوړل** :- اص (۱)ټکره خوړل ، ډغره خوړل ، تنبېدل

د عشق له لارې نۀ جاروزم که تېنډک خورمه پرې
جـوړ زمـا مـخ وتـه د بـل یـو دلاور مـخـه ده (حمزه شینواري)

(۲)دوکه کېدل

**وهل** :- اص ، ګډ ګډ تلل۔

**تینډکه** :- ( تي + ن + ډ + که ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: تینډکې ] د اُوبو داره ، د اوبو پُشکے ، د اوبو فوّاره۔

**وهل** :- (اف) اص ، د اوبو پُشکے وهل ، د اوبو د فوّارے په شان ته وتل۔

**تینډلک** :- ( تي + ن + ډ + ل + ک ) [ اف: پ (قاموس) اس ص ، مذ (مؤ ، وا : تېنډلکه ، ج: تینډلکې )]هغه سړے چې په تېنډکونو ځي ، ګوډے۔

**تینـډوبے** :- ( تـي + ن + ډو + بے ) [ اف: پ (قاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: تینډوبي ]فوّاره۔

**تېنډورے** :- (تي+ن+دو +رے) [ اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ]تینډورے ، د پوزې پېدوانک تینډورے -

**تینـدوړے** :- ( تـي + ن + دو + ړے ) [ اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج: تینډوړي ]او ـــــــ تینډورے -

**تینـدوړے** :- ( تـي + ن + دو +ن + ړے ) [ اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ] د غـوړ پڅکې یا پوڅکې -

**تینـدوړے** :- ( تي + ن + دو + ن + ړے ) [ پ (سو) اِس مذ ]د پوزې هغه حصه چې زنانه پېزوان پکښې اچوي -

**تینـدوے** :- ( تـي + ن + د + وے ) [ اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ]کوپنـدے هډوکے

**تینکے** :- (تي +ن +کے) اف :پ قاموس) اِس ، مذ]د دېګ کفګیر یا چمچې

**تېنګ** :- ( تې + ن + ګ ) [ اف: پ (قاموس ) اِس ، مذ ]تابوت ، مړے ، شخړه

**تینګړي** :-(تي + ن + ګ + ړي) [ پ (ظفر) اِس ، مؤ ]د دوو ګوتو ټک ، چُټکې -

**کول** :- ( ظفر )اص ، د دوو ګوتو نه ټک ایستل ، چُټکې وهل -

**تینګړے** :- ( تي + ن + ګ + ړے ) [ اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ]غـاب، کـاب ، لوړکے ، پرانېس ، ترینګلے -

**تېنګه** :- ( تـې + ن + ګـه ) [ پ (ظفـر ) اِس ، مـؤ ] اوږده وارۀ وارۀ کـانړي چې هلکان پرې یوه لوبه کوي -

**تینګې** :- (تي + ن +ګې )[پ (ګن ) اِس ، مؤ]په یوه ساه اوبۀ څښل -

**تیـور** :- ( تـې + و + ر) [ اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ (مـؤ ، وا: تیـوره ، ج: تیورے )] (۱)هغۀ ژونده سرے چې تي لري (۲)چې لوے لوے تي ئې وي

**تېوزه** :- ( تې + و + زه ) [اف: پ (قـاموس) اِس ،مؤ ، وا ، ج: تېوزې] سمسـته ، سمڅ ، ګاره ، سپو نغاړې ، چېوده (څېوده) پـه غـرۀ کښـې هغـه غـار چې خلق پکښې دُروند باران او د سارۀ غارمۀ نه ځان بچ کوي -

**تیه** :- ( ت + یـه ) [ اف: پ (قـاموس) مؤ ]دا یـو غـړ دے چې د ببـلېدو یـا د شپشیتو د دوباره وار کولو په وخت وئیلے شي -

**تېیل** :- ( تې + ي + ل ) [ اف: پ (قـاموس) مص مت ]په غـوړو یـا تېلو کښې سرۀ کول -

**تېلے** :- ( تې + ي + لے ) [ اف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: تېلي ، مؤ: تېیلے )په غوړو یا تېلو کښې سُور کړے -

**تېینکي** :- ( تـې + ي + ن + کي ) [ اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، ج ] د پـوزې تنکے هډوکے -

**تېینګ** :- (تې + ي + ن + ګ ) [ اف: پ (قاموس) حمص ]او ـــــ تېینه -

**تېینه** :- ( تـې + ي + نه )[ اف:پ (قـاموس) حمـص ]تېینګ پـه غـوړو یـا تېلـو کښې سُور کونه -

**تېینے** :- (تې + ي + نے ) [ اف: پ (قاموس ) اِس ، مذ ، وا ، ج: تېیني ] چنې یا داسې بل څېز چې په یو څل ورتے کړے شي ، یو پُور ، یوه ګانې -

**تېیني** :- (تې + ي + ني ) [ اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ] لړمـاس ، پړپوس ، اینه ، زړۀ او پښتورګي -

**تېینـي والا** :- ( تېینـي + وا+ لا [اف: پ (قـاموس) اِس ص، مـذ ]لړمـاس پخوُونکے

**تېیُونکے** :- ( تـې + یُـو + ن + کے ) [ اف: پ (قـاموس) اس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: تېیُونکي (مؤ: تېیونکې )په غوړو یا تېلو کښې سُور کوُونکے -

**تَبې** :- ( تې + یي ) [ اف: پ (قاموس ) اِس ، مؤ ] داي

◈◈◈

# ټ

ټ :- (ټې) [پ ، حرف ، مؤ ، وا ، ج: ټېنګاني ]د الف بې د پټې پينځم توری
ټاب :- ( ټ+ ب ) [ اف: پ ( قاموس ) اس ، مذ ]ټاپ ، افسوس ، ارمان .
ټابۍ :- (ټا + بۍ ) [ اف: پ ( قاموس ) اس ، مؤ ]هغه اوښه چې دوه کاله پس بچې راوړي .
ټاپ :- ( ټا + پ ) [ پ ، اس ، مذ ] (۱)ټاب ، ارمان ، افسوس

چې څوک ټاپ درپسې وکه سره ټک وهي

لاسونه

دا ژوندون دی مردن نه دی که دي وشي مردن هسې

(خوشحال)

(۲)مهر ، نشانه ، چاپ ټاپه(۳)د ټانګې يا د موټر چت ، ترپال (۴)سر ، څوکه

کول :- اص(۱)افسوس کول ، لاس مروړل

پخپله عاشق وژنې بيا پخپله پسې ټاپ کړې

چې چاروته دې ګورم واړه چارې دي عجب ستا (خوشحال)

(۲)چاپ لګول ، مهرلګول

کېدل :- اص(۱)ارمان کېدل ، افسوس کېدل ، لاس مروړلي کېدل (۲)چاپ کېدل، ټاپه لګول کېدل .

ټاپ ټيپ :- ( ټا + پ + ټي + پ) [ پ ، اس ، مذ ] (۱)دارمدار (۲)ډول سنګار (۳)کمزوری ، بوډا ، ټپ ، زوړ .

ټاپل :- ( ټا + پ + ل) [ پ ، مص مت ] (۱)ټاپه لګول ، مهرلګول ، نخښنه لګول ،ټپل (۲)څاروي په ټکولو سره خصي کول .

ټاپلی :- ( ټا + پَ + لی ) [ پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټاپلي (مؤ: ټاپلې )] (۱)په نخښنه شوی ، ټاپه شوی ، (۲)په ټکولو خصي شوی .

ټاپن :- ( ټا + پ + ن ) [ اف: پ ( قاموس ) اس ، مذ (مؤ : وا : ټاپنه ، ج: ټاپنې )[

مُهر لګوونکی ، ټاپه لګوونکی ، چاپ کوُونکی .

ټاپن ځې :- ( ټا + پ + ن + دزی ) [ اف: پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج: ټاپن ځيونه ]چا په خانه پرېس .

ټاپنه :- ( ټا + پ + نه ) [ پ حمص ] (۱)چاپ کونه ، ټاپه لګونه (۲)خصي کونه

ټاپُو :- ( ټا + پُو ) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټاپُوګان ] (۱)د درياب په مېنځ کښې وره جزيره (۲)برج ، مانۍ .

ټاپوره :- ( ټا +پو+ ره ) [اف: پ ( قاموس ) اس ، مؤ ، وا ، ج: ټاپورې ] د جامو وينځلو تخته .

ټاپوړۍ :- ( ټا + پو + ړۍ ) [ اف: پ ( قاموس ) اس ، مؤ ]ټوکان ، د ترخ امسا .

ټاپووزمه :- ( ټا + پو + و + ز + مه ) [ اف : پ ( قاموس ) اس ، مؤ ، وا ]

د ټاپو په شان ، د ټاپو په رنګ .

ټاپول :- ( ټا + پ + و + ل ) [ اف:پ ( قاموس) مص مت ]ټاپ کول، چاپ کول ، ټاپه لګول ، مُهر لګول .

ټاپُونکی :- ( ټا + پو + ن + کی ) [ اف: پ ( قاموس ) اس فاع ، مذ ، وا ، ج: ټاپُونکي (مؤ : ټاپُونکې )]چاپ کوُونکی ، ټاپه لګوُونکی ، مهر لګوُونکی .

ټاپونګ :- (ټا + پ + وَ + ن + ګ ) [ اف: پ ( قاموس ) حمص ]و ـــــ ټاپونه .

ټاپونه :- ( ټا + پ + و + نه ) [ اف: پ ( قاموس ) حمص ]ټاپونګ، چاپ کونه ، مهر لګونه ، ټاپه لګونه .

ټاپوونکی :- ( ټا+ پ +وُو + ن +کی ) [اف:پ ( قاموس ) اس فاع مذ ، وا ، ج: ټا ] مهر لګوُونکی ، چاپ کوُونکی ، ټاپه لګوُونکی .

ټاپه :- (ټا + په ) [ پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ټاپې ] (۱)ټاپ ، مُهر ، نشاني (۲)په جامه څهٔ کشيده.

ټاپه کول :- اص (۱)ټاپ لګول ، مُهر لګول ، نخښنه لګول (۲)په جامه کشيده کول .

کېدل :- اص (۱)نخښنه لګېدل، چاپ لګېدل ، مهر لګېدل (۲)په جامه کشيده کېدل .

لګول :- اص (۱)ټاپه کول ، مهر لګول (۲)څرګندول (۳)خپلول ، ځان ته کول .

ټاپه رس :- ( ټا + په + رَ + س ) [ اف: پ ( قاموس ) اس ، مذ ]نمبرګل، نور پرست ، نمر پرست

ټاپۍ :- (ټا + پۍ ) [اف: پ ( قاموس ) اس ، مؤ] (۱)د غنمو د درمن خاص نخښنه

(۲)د کشيدې ګل .

کول :- (اف)اص (۱)د غنمنو په درمن خاص نخښنه لګول (۲)کشيده کول .

ورسره وهل :- (اف) اص (۱)وخت ورسره مقرره ول (۲)د څهٔ څيز سودا کول ، څهٔ لږې پيسې د لوظ ټينګولو د پاره ورکول .

ټاپي :- (ټا + پي ) [پ (ظفر ) اس ، مؤ ] (۱)دوستي ، يارانه ، ملګرتيا (۲)وخت مقرره ول (۳)پټه صلاح مشوره کول (۴)د مرض سخت وخت (۵)سائي ، د سودا په لړ کښې پېشګي رقم ، ټيپي .

وهل :- اص (۱)ملګرتيا کول ، دوستي ساتل (۲)وخت مقرره ول (۳) پټه صلاح مشوره کول (۴)د مرض سخت وخت تېرول (۵)ټيپي يا سائي ورکول .

ټاپی :- (ټا + پی ) [اف: پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج: ټاپي ] (۱)فاصله ،مزل (۲)د پور نېټه (۳)دوستي ملګرتيا (۴)مقرر وخت (۵)د مرض سخت وخت (۶)جم جکړ ، زُول باران .

ټاپی :- (ټا + پ ی [اف: پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج: ټاپي ]ټاپه لګوونکی ، مهر لګوُونکی .

ټاپېدل :- (ټا + پې + د + ل ) [اف: پ ( قاموس ) مص لا]چاپ کېدل .

ټاپېدنګ :- (ټا+ پې + د + ن + ګ ) [اف : پ ( قاموس ) حمص ]و ـــــ ټاپېدنه

ټاپېدنه :- (ټا + پې + د + نه ) [اف: پ ( قاموس حمص ] ټاپېدنګ ، چاپ کېدنه

**تاپېدُونکے** :- (تا + پې + دو + ن + کے) [اف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: تاپېدُونکي مؤ: تاپېدُونکې]چاپ کېدُونکے ۔

**تاپ** :- (تا + پ) [اف: پ (قاموس) ه: گهاپ ، اس ، مذ] (۱)فخر ، ویاړ ، کبر ، ډاټ شاټ ، لوئي ، لوے نظري ، (۲)کوږ ، راتاؤ۔

**کول** :- (اف)اص ، فخر کول ، کبر کول ، لوئي کول ، ویاړ کول ۔

**په تاپ کښې کېدل** :- (اف) اص ، (۱)په مزه کښې کېدل (۲)فخراو لوئي کول ۔

**تـاپ**:- (تـا +پ) [ه ، اس ، مـذ ، وا ، ج: تاپُونـه]د سـنـو نـه جـوړه کـپـړه ، مـرم جامه ، ترپال ۔

**اچول** :- اص ، تاپ غوړول ، څهٔ څيز په ترپال پټول ۔

**غوړول** :- اص ،و ـــــــــ تاپ اچول ۔

**تاپ باپ** :- (تا + پ + با + پ) [پ ، ص]تاپ پاپ ، نخره ، شان شوکت ۔

**تاپ پاپ** :- (تا + پ + پا + پ) [پ ص]و ـــــــــ تاپ باپ ۔

**تاپکے** :- (تا + پ + کے) [پ ، اس ، مذ ،وا ، ج: تاپکي]د اوسپنې یا د ټیم نه جوړ هغهٔ ښانک شان چې ځینې خلق ورتـه بـالتي وائي او خـاورې ، شګې یا بجري د وړلو راوړلو د پاره استعمالېږي

چې تړوله ورځ غریب تاپکے اوچلوي

ا ټهېکدار ئې غېر حاضر اولګوي (بسمل)

**تاپکي چلول** :- اص ، مزدوري کول ، خواري محنت کول ۔

**تـاپوالے** :- (تـا + پ + وا + لے) [اف پ (قـاموس) اس ، مـذ]کوږوالے ، پـه یـو طرف ځنګزنتوب ۔

**تاپوب** :- (تا + پو +ب) [اف پ (قاموس) اس ، مذ] (۱)ګذران ، (۲)خاموشي ۔

**تاپوب کول** :- (اف)اص ، ګذاره کول ، وخت تېرول ۔

**نيـول** :- (اف) اص ، آرام کښې کېدل ، د ژوند ورځې شپې ښې کېدل ، ګُذاره کېدل ۔

**تاپوبه**:- (تا + پو + به) [اف: پ اس ، مؤ]تاپوبې ، د استوګنې ځـاے ، د اوسېدلو ځاے ۔

**تاپوبے** :- (تـا + پـو+ بے) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] (۱)د اسـتـوګنې ځـاے ، تاپوبه (۲)استوګن ۔

**تاپوکه** :- (تا + پو +که) [اف : پ ، اس ، مؤ]و ـــــــــ تاپکه ۔

**تـاپول** :- (تـا + پ + و + ل) [اف: پ (قـاموس) مـص مـت] (۱)تـاپ ورکـول ، کوږول

(۲)نیاز او ویاړ ورکول ، په سر خېژول ۔

**تاپونه** :- (تا + پ + و + نه) [اف : پ (قاموس) حمص] (۱)تاپ ورکونه ، کږونه ، په سر خېژونه ۔

**تاپووُنکے** :- (تا + پ + وُو + ن + کے) [اف : پ (قاموس) اس فـاع ، مذ ، وا ، ج: تـاپووُنکي (مؤ: تـاپووُنکې)] (۱)تـاپ ورکـووُنکے ، کـږووُنکے (۲)نیـاز او ویاړ ورکووُنکے ، په سر خېژووُنکے ۔

**تاپه** :- (تا + په) [اف: پ (قاموس) ص]برابر ، سیخ ، رسا ۔

**تاپي** :- (تا + پي) [پ ، اس ، مؤ] (۱) زانګېده ، للو للو ، د ماشـومانو پـه ژبـه زانګو ته وائي ۔

**خوړل** :- اص ، زانګ خوړل ، زانګېدل ۔

**کول** :- اص ، اوده کول ، په زانګو کښې اچول ، زانګ ورکول ۔

**کېدل** :- اص ، د زانګو په زنګېده کښې اُودهٔ کېدل ۔

**وهل** :- اص جُوټې وهل ، رینګېدل ۔

**تاپي** :- (تا + پي) [پ (ظفر) اس ص ، مذ]د تاپ خاوند فیشني ، مغروره ۔

**تاپېدل** :- (تـا + پې + د + ل) [اف: پ (قـاموس) مـص لا]کږېـدل ، پـه یـو طـرف راتپېدل ۔

**تاپېدنـه** :- (تـا + پې + د + نـه) [اف : پ (قـاموس) حمص]کږېدنـه پـه یـو طـرف راتپېدنه ۔

**تاپېدُونکے** :- (تـا + پې + دُو + ن + کے) [اف: پ (قـاموس) مف ، مـذ ، وا ، ج: تاپېدُونکي (مؤ : تاپېدُونکې)]کږېدُونکے ، په یو طرف راتپېدُونکے ۔

**تاخ** :- (تا + خ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ]تاخ ، زغابنت ، زغـل ، منډه ۔

**تاخ** :- (تا + خ) [پ ، اس ،صو ، مذ]تخ ، د پټاخې یا د ټوپک د ډز آواز ۔

**تـاره** :- (تـا + ره) [اف: پ (قـاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: تـارې]خپتـه ، ګېـډه ، نس ۔

**تارے** :- (تا + رے) [اف : پ (قاموس) ه : اټاري ، اس ، مذ ، وا ، ج: تارې] (۱)برج ، سنګر ، بالاخانه (۲)د ښښتر ځانګه ۔

**تاري** :- (تا + ري) [پ (ګن) اس ، ص]هغه څوک چې فضول خبرې ډېرې کـوي ، ترېدُونکے ، ترتر کووُنکے ، غُل غوشایه خوړُونکے۔

**تـاس** :- (تـا + س) [اف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] (۱)د لوښـي د چـاؤدلو یـا ماتېدلو آواز (۲)ټسه ، لوے پګ ، لوے پټکے ۔

**ترل** :- اص ، لوے پټکے تړل ، لوے پګ وهل ، غټ دستار په سر کول۔

**تاس** :- (تا + س) [انګ ، اس ، مذ]اسک ، یسک ، شرط ، قرعه ۔

**اچول** :- اص ، اَسک ، اچول ،

**بائلل** :- اص ، اسک بائلل ، شرط بائلل ۔

**ختل** :- اص (۱)اسک ختل ، فال ختل (۲)په لرګي د څهٔ بـل سخت څېـز وهلو آواز راتلل

**ګټل** :- اص ، امسک ګټل ۔

**تاغے** :- (تا + غے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تاغي ، (مؤ: تاغې)] هغه څوک چهٔ سترګې ئې ټغې راوتې وي ، ټغې سترګې ۔

**تاق** :- (تا + ق) [پ (ظفر) اس ،صو ، مذ] (۱)ټق ، ټک ، د ټوپک د ډز آواز ، (۲)د څهٔ سخت څيز د ماتېدلو آواز ۔

**تـاقر** :- (تـا + ق + ر) [پ(ظفـر) اس ، مـذ ، ج: تـاقران (مـؤ ، وا: تـاقره ، ج: تاقرې)] بوډا ، زوړ ، عُمر خوړلے ، تاکر ۔

**تاک** :- (تا + ک) [اف:پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تاکُونه ، (مؤ: وا ، تاکه ، ج: تاکې)] (۱)تریو ، ترش (۲)هغـه ګـډ چې نخنښـه پرې شوې وي ، منلې شوے ګډ (۳)یوه وُنه چهٔ مېوې ته ئې هم تاک وئیلې شي ۔

**تـاک تـوک** :- (تـا + ک + تـو + ک) [پ ، اس ، مـذ]د کـور سامان اسباب تکـه توکه ، لوښے کورے ۔

**برابـرول** :- اص ، تـاک تـوک سـمول ، د کـور سـامان سـنبالول لوښے کـودے برابرول ، د کور سنبالښت کول ۔

**سمول** :- اص و ـــــــــ تاک توک برابرول ۔

**تـاکر** :- (تـا +ک + ر) [اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ]چندرو ، د ماشـومانو یـوه لوبـه چې ورکوټې پلن کانړے پـه پښـه د یـوې کرښې نـه بلې کرښې تـه تنـه باسي ، ګاټا

**تاکر** :- (تا + ک + ر) [پ ، ه : ټهاکر اس ، مذ (مؤ ، وا : تاکره ، ج: تاکرې)] تاکور ، تاقر ، بُوډا ، عمر خوړلے ۔

**تاکل** :- (تا + ک + ل) [پ ، مص مت] (۱)مقررول ، پر نخنښـه کـول (۲) مریض

ته ټکور ورکول.

**تاکلے** :- (تا + ک + لے) اپ، مف، مذ، وا، ج: تاکلي (مؤ: تاکلې) په ګوته شوے، مقرر شوے، چوڼ شوے، په نخښه شوے.

**تاکنده غرمه** :- (تاک + ن + ده + غ + ر + مه) [اف: پ (قاموس) اس ص مؤ] ټکنده، غرمه، ټکنه غرمه، سره غرمه.

**تاکنه** :- (تا + ک + نه) اپ، حمص] مقررونه، نخښه لګونه، نشان لګونه، په ګوته کونه.

**تاکو** :- (تا + کو) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] (۱) داړې مار، شوک مار، ډاکو
(۲) د مېښو، د غوا غويانو يوه بيماري (۳) کينه ناک دښمن.

**د چاد سر تاکو کېدل** :- (ظفر) اص، د چا دښمن کېدل، د چا د وينو تږے کېدل

**تاکور** :- (تا + ک + و + ر) [اف: پ (قاموس) اس، مذ] و ــــــ تاکر.

**تاکور** :- (تا +کو + ر) اپ، اس، مذ] ټکور، تب

**تاکونکے** :- (تا +کو +ن +کے) اپ، اس فاع، مذ، وا، ج: تاکونکي (مؤ: تاکونکې)] نخښه لګوونکے، نشان لګوونکے، په ګوه کوونکے.

**تاکې** :- (تا + کې) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] (۱) د مچو غني خُلۀ چې کانړے پکښې کښېښودے شي، د مچوغني ګوتمه (۲) تناکه چې د وينې زوې نه ډکه وي، (۳) تر پوزو مور بنيادم يا څناور، (۴) نخښنه (۵) ډته ډېډه، خولبورے (۶) د اوبو بانګے يا تانګے (۷) پېوند.

**کول** :- (اف) اص، بنۀ مړول، په ګېډه ډکول.

**کېدل** :- (اف) اص، بنۀ مړېدل، په ګېډه کېدل.

**يوه تاکې دربدل** :- (اف) اص، په ګېډه بنۀ مړېدل.

**تاکي** :- (تا + کي) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] چکچکې، تاړې، لاسُونه ټکول، يا پړقول.

**وهل** :- اص تاړې ټکول، لاسُونه پړقول، چکچکې وهل.

**تاکے** :- (تا + کے) اپ (ګن) اس، مذ، وا، ج: تاکيان] ټيکه لګوونکے، خال وهُونکے.

**تاکے** :- (تا + کے) اپ (سو) اس، مذ] څاڅکے.

**کوني له تاکې ورکول** :- (سو) اص تندے ګونځې کول، غصه کېدل، احتجاج کول.

**تال** :- (تا+ ل) اپ، اس، مذ، وا، ج: تالونه] (۱) زانګو، پينګه

لـه نـاکس مـا غـزۀ مـه خوره حميده
دم په خود شه د خپل فکر په تال زانګه

(۲) تأخير، ډېرې، ځنډ (۳) د جولاګي يا غني تار (۴) د تيلې دړ
(۵) د لرګو ډېرے

**تال اچول** :- اص (۱) زانګو لګول، په وُنه يا لرګو پورې زانګه تړل، پينګه کول.
(۲) د لرګو د خرڅولو کاروبار شروع کول. (۳) د غنې يا جولاګي جال اوبدول

**خوړل** :- اص (۱) جُوتې خوړل، په زانګو يا پينګه زنګېدل. (۲) ايسارېدل، اتالېدل.

**ورکول** :- اص (۱) ديکه ورکول، جوته ورکول. (۲) شاته غورزول. (۳) په کار کښې تاخير راوستل، اتالول.

**وهل** :- اص، جُوته خوړل، جول خوړل.

**دفکر په تال زنګېدل** :- اص. فکرونه کول، په سوچ کښې ډُوب کښېناستل

فـکـر چـې زما د يـار د زلفو په تال زانګي
شپه د انتظار دے د محشر هومره اوږده شي (حمزه شينواري)

**د فکر تال شلېدل** :- اص. د سوچ او فکر سلسله ختمېدل، د تصوّر لړۍ شلېدل

که زۀ خبر وے چې به شلېږي
د فـکر تـالـه زۀ بـه ولې درختمه! ټپه

**تال متال** :- (تال + م + تا + ل) اپ، ه: تال متول، اس، مذ]
ټيل ټال، ټيل جد، حيله بانه.

**کول** :- اص، ټيل، ټال کول، خبرې ته ډيل ورکول، خبره ځنډول، حيله بانه کول، تال متالول، نن صبا کول،

**تال متالول** :- (تال + م + تال + و + ل) اپ مص مت] څوک په طمع ساتل، چاته په څۀ کار کښې حيله بانه کول.

**تال متالونه** :- (تال + م + تا + ل + و + نه) اپ، حمص] څوک په طمع ساتنه، چاته په څۀ کار کښې حيله بانه کونه، هر چاته نر زوے ورکونه.

**تال متالوونکے** :- (تال + م + تال + وو + ن + کے) اپ، اس فاع، مذ، وا ج: تال متالوونکي (مؤ: تال متالوونکې] څوک په طمع ساتونکے، چاته په څۀ کار کښې حيله بانه کوونکے، هر چاته نر زوے ورکوونکے.

**تال متالېدل**:- (تال + م+ تا+ لې+ د+ ل) اپ، مص لا] په څۀ کار کښې حيله بانه کېدل، څوک په طمع ساتلے کېدل.

**تال متالېدنه** :- (تال م + تا + لې + د + نه) اپ، حمص] تال متالېدۀ، په څۀ کار کښې حيله بانه کېدنه، په دوکه او انتظار کښې ساتنه.

**تال متالېدونکے** :- (تال + م + تا + لې + دو + ن + کے) اپ، مف، مذ، وا، ج: تال متالېدُونکي (مؤ: تال متالېدُونکې)] په انتظار او حيله کښې ساتلے کېدُونکے، په اُميد کښې کښېنوُونکے.

**تال متالېدۀ** :- (تال + م + تا + لې + دۀ) اپ، حمص] و ــــــ تال متالېدنه.

**تال متول** :- (تال + م + تو + ل) ه، اس، مذ] و ــــــ تال متال.

**تالول** :- (تا + ل + و + ل) اپ، مص مت] (۱) زنګول، جول ورکول، زانګ ورکول (۲) ايسارول، اتالول.

**تالولے** :- (تا+ ل+ و+ لے) اپ، مف، مذ، وا، ج: تالولي (مؤ: تالولې)] (۱) زنګولے، جول ورکړے، جُوته ورکړے. (۲) اتال کړے، ايسار کړے، معطل کړے

**تالونګ** :- (تا+ ل + و + ن + ګ) [اف: پ (قاموس) حمص] و ــــــ تالونه.

**تالونه** :- (تا + ل + و + نه) اپ، حمص] (۱) زنګونه، جول ورکونه، جُوته ورکونه (۲) اتالونه، ايسارونه.

**تالوونکے** :- (تا + ل + وُو + ن + کے) اپ، اس فاع، مذ، وا، ج: تالوُونکي، (مؤ: تالوُونکې)] (۱) زنګوونکے، زانګ ورکوونکے (۲) ايساروونکے، اتالوونکے

**تاله** :- (تا + له) [اف: پ (قاموس) اس، مؤ] (۱) يوځاے، په يوځاے ساپټ
(۲) استرانې، خلق د غوايانو ګوارے ته تاله وائي.

**په تاله خرڅول** :- اص. په يو ځاے خرڅول.

**تالۍ** :- (تا + لۍ) اپ (ګن) اس، مؤ] شوه، يوه وُنه چې د لرګي نه ئې د کټ پښې او کرسۍ مېزُونه جوړولے شي.

**تالېدل** :- (تا + لې + د + ل) اپ، مص] (۱) زنګېدل، جوتې خوړل، جول خوړل. (۲) اتالېدل، ايسارېدل.

**تالبدلې** :- (تا + لې + د + لے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: تالبدلي (مؤ: تالبدلې)] (۱)زنګبدلے ، جُوته خوړلے ، جول خوړلے (۲)ایسار شوے ، اټال شوے

**تالبدنګ** :- (تا+ لې + د + ن + ګ) [اف: پ (قاموس) حمص ] و ــــ تالبدنه.

**تالبدنه** :- (تا+ لې + د + نه) [پ ، حمص ] (۱)تالبدنګ ، تالبدۀ ، زنګبدنه ، جُوتې خوړنه ، جول خوړنه (۲)اټالبدنه، ایساربدنه.

**تالبدُونکے** :- (تا لې + دُو + ن + کے) [پ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: تالبدُونکي (مؤ: تالبدُونکې)] (۱)زنګبدُونکے ،جوتې خوړونکے ، جول خوړونکے (۲)اټالبدُونکے ، ایساربدُونکے .

**تالبدۀ** :- (تا + لې +دۀ) [پ ، حمص ] و ـــــــــ تالبدنه.

**تامباري** :- (تا + م + با + ري) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ] په چغو چغو ژړا ، په زوره ژړا انګولا ، تانتياره.

**وهل** :- (اف) اص ، په چغو چغو ژړل ،ژړا انګولا کول.

**تامبُوسے** :- (تا + م +بُو + سے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تامبُوسي ]د واورې پوڅے ، د واورې وړې.

**تامته** :- (تا + م + ته) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: تامتې ] تانته ، تانډه ، د جوارو یا باجرو درُوزه ، تانګاري.

**تانتياره** :- (تا + ن + تيا + ره) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: تانتياري ]. و ــــــــ تامباري.

**کول** :- (اف) اص .په چغو چغو ژړل ، تامباري وهل.

**تانتيس** :- (تا + ن + تې + س) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ ، وا: تانتيسه ، ج: تانتيسې)]کم عقل ، بې عقله ، بودلے ، ناپوهه.

**تانتيوبے** :- (تا + ن +تيو + بے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ] ګڼه ګوڼه ، غور ببر ، بنډار ، زيات خلق.

**کول** :- (اف) اص ګڼه ګوڼه ، جوړول ، غور ببر کول ، زيات خلق جمع کېدل.

**تانتيور** :- (تا + ن + تيو + ر) [پ (ظفر) اس ، مذ ] تانډور ، د ښيباکو تيوتې چې په نغرې کښې يو بل د پاسه داسې کښېښولې شي چې اور زر واخلي

ستا د مخ واورته چې پکے د رقيب خوځي
لائے بنـۀ د زړونـو پـه تـانـتيور ولګوه (عليخان)

**تانته** :- (تا ن ته) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تانتې] و ـــ تامته.

**تانتې ورسره چيچل** :- (اف) اص چا سره ځان برابرول.

**تانچې** :- (تا + ن + چې) [پ ، اس ، مؤ ] د اُوبو تېنکي.

**تانډور** :- (تا + ن + ډو + ر) [پ ، اس ، مذ ] و ــــ تانتيور.

**تانډه** :- (تا + ن + ډه) [پ اس ، مؤ ، وا ، ج: تانډې ] (۱)تانته (۲)د هزارې په ضلع کښې د پکلې په علاقه کښې د يو کلي نوم.

**ټانک** :- (ټا + ن + ک) [پ ، اس ، معرفه ] د ډېره اسماعيل خان په ضلع کښې يو قصبه چې د تحصيل صدر مقام هم دے.

**ټانک** :- (ټا + ن + ک) [انګ ، اس ، مذ ]د طاقت دارو يا خوراک.

**ټانکه** :- (ټا + ن + که) [ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ټانکې ] (۱)ټېک ، ګنډه ، بخيه ، (۲)پيوند

**خلاصېدل** :- اص ، ټانکه شلېدل.

**شلېدل** :- اص د اپريشن د زخم تار خلاصېدل ، او پرهر سپړدلے کېدل ، ټانکه لاصېدل ،

**لګول** :- اص (۱)ګنډل ، (۲)پيوند لګول (۳)دوکه کول ، ټګېيل.

**تانګ** :- (تا + ن + ګ) [پ ، اس ، مذ وا ، ج: تانګونه ] (۱)آوازه ، غږ ، اوچت ژغ ، وړ ژغ.

خولۀ ئې سره کړې د دارا په وينو ده
شفق ته ګوره دا ووې په تانګ دے (خوشحال)

(۲)موسم ، وخت ، موقع.

پاڅه عليخان زور کومک د رقيب ورک شو
تانګ دے که وو زغلے نۀ لاداشته نۀ هغه

(۳)د بزې ګډې د لنګېدو وخت.(۴)يوه غرئيزه مېوه. (۵)موسمي باران. (۶)زد ، په درياب يا سمندر کښې د کاڼو جوړ هغه مينار چې د دې غرض د پاره جوړولې شي چې په هغه لار کشتۍ تګ نۀ کوي .(۷)سو: د اوبو په مينځ کښې وچوبه ، ټاپو ، جزيره.

**ختل** :- (ب ، خ)اص آوازه ختل ، مشهوربدل ، مشهوري کېدل.

**ختل** :- (سو) اص په سيند کښې وچه مزکه راوتل.

**خطاکول** :- اص موقع خطا کول ، وخت د لاسه وتل.

**وراچول** :- (سو) اص د خبرې شروع کول.

**بې تانګه** :- اص بې وخته بې موقعې.

**په تانګ راتلل** :- اص په وخت راتلل.

**تانګاري** :- (تا + ن + ګا + ري) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]و- تامته.

**تانګتوره** :- (تا + ن + ګ + تُو + ره) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: تانګتورې ]دا تُوره.

**تانګر** :- (تا + ن + ګ + ر) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]کنګر ، د جوارو يا باجرې پاتې تانتې.

**تانګو** :- (تا + ن + ګو) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]غرئيز ناک ، يوه مېوه.

**تانګه** :- (تا + ن + ګه) [اف:پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: تانګې ]د تانګو يا ناک وُنه.

**ټانګه** :- (ټا + ن + ګه) [پ ، ه : ټانګه ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ټانګې ] بګۍ ، د سورلۍ هغه څيز چې دوه پايې لرې او اس ئې راکاږي.

**پرانستل** :- اص ټانګه خلاصول ، د ټانګې چلول بس کول ، ټانګې ته دمه ورکول

**ترل** :- اص ټانګه جوت کول ، اس پسې ټانګه ترل.

**جوت کول** :- اص و ــــــــــ ټانګه ترل.

**چلول** :- اص ټانګه په سړک بوول ، ټانګه روانول.

**خلاصول** :- اص و ــــــــ ټانګه پرانستل.

**کرايه کول** :- اص ټانګه کول.

**کول** :- اص يو ځاے ته د تلو د پاره په کرايه ټانګه روانول ، ټانګه کرايه کول

**تانګې** :- (تا + ن + ګې) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]يوه غرئيزه وُنه چې لرګي نه ئې بتې جوړېږي.

**ټانګې** :- (ټا + ن + ګې) [پ (ګن) اس ، مؤ ] بانګې ، په يو لرګي کښې چې دوه ټيمان د پړو يا تارونو سره اوترلے شي او پکښې اوبۀ د يو ځاے نه بل ځاے ته وړلے کېږي.

**تانګے** :- (تا + ن + ګے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تانګي] اوچته هواره مزکه.

**تاؤن** :- (تا + ؤ + ن) [انګ ، اس ، مذ ، وا ج : تاؤنُونه ] قصبه د کلي نه لوے او د ښار نه د کمې آبادۍ ځاے.

**ټاؤن ډیوټي** :- (ټاؤن + ډیو + ټي) [انګ ، اس ، مؤ ]د چونګۍ محصول ـ

**ټاؤن کمېټي** :- (ټاؤن + ک + مې + ټي) [انګ : اس ، مؤ ، وا ، ج: ټاؤن کمېټیانې ]د قصبې یا ورکوټې شان ښارېې هغه اداره چې خلق دووټونو په ذریعه ورته ممبران ځونې کوي او دا خلق د مقرر میعاد د پاره د دې قصبې یا ښارېې د انتظام ذمه وار وي ـ

**ټاؤن هال** :- (ټاؤن + ها + ل) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټاؤن هالونه ]
د قصبې یا ښارېې هغه سرکاري مکان چې پکښې غونډې کېږي ـ

**ټاه** :- (ټا + ه) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]کړت ، خبره ګېډل ـ

**ټائي** :- (ټا + ئي) [انګ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ټایانې ، ټائیګانې ] د ریښمینې ، ورینې یا سپنې سینې کپړې رنګداره او ګُلداره پټۍ چې ځینې خلق ئې د ډول د پاره د کوټ پتلون سره په غاړه کوي ـ

**ټائپ** :- (ټا + ئي + پ) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټائپونه ](۱)چاپ ټاپه ، د اوسپنې نه جوړ ټکي ـ(۲)قسم ، شکل صورت ـ(۳)نمونه ، نقشه ـ

**ټائپ رائټر** :- (ټائپ + را + ئي + ټ + ر) [انګ اس ، مذ ، وا ، ج: ټائپ رائټرونه ]هغه مشین چې ټائپ پرې کولے شي ، د لیک مشین ـ

**ټائپسټ** :- (ټا + ئي + پ + س + ټ) [انګ ، اس فاع ، مذ ، وا ، ج: ټائپسټان ]ټائپ کوُونکے ، ټائپ په مشین کارکوَونکے ، په ټائپ رائټر کاغذونه چاپ کوونکے ـ

**ټائټل** :- (ټا + ئي + ټ + ل) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټائټلونه ](۱)د کتاب رومبۍ پاڼه یا مخ چې پرې د کتاب نوم لیک وي ، سرورق ـ(۲)د مضمون یا مقالې سرخط ـ(۳)د حکومت د طرفه ورکړے شوے خطاب

**ټائر** :- (ټا + ئي + ر) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټائرونه ]ټېر ارینا ے ، پَیه ـ

**ټائم** :- (ټا + ئي + م) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټائیمونه ]ټېم ، وخت ـ

**ټائم پیس** :- (ټائیم + پي + س) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټائم پیسُونه ]لویه ګړۍ چې په مېز ، انګیټۍ یا تاخ کښې پرته وي او اکثر په مقرره وخت ټنګېږي ـ

**ټائم ټېبل** :- (ټائیم + ټې + ب + ل) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج : ټائیم ټېبلونه ]
د وخت د تقسیم نقشه ـ

**ټَب** :- (ټ + ب) [انګ ، اس ، مذ وا ، ج: ټبونه ]د اوسپنې د څادر نه جوړ هغه لوے ښانک شان چې ځینې خلق پکښې لامبي او ځوک پکښې جامې هم وینځي ، دو بیان خاص کر ترې اخلي ـ

**ټب** :- (ټ + ب) [پ (ګن) اس ، مذ ، وا ، ج: ټبان ]ټپ ډېران ـ

**ټبر** :- (ټ + ب + ر) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټبرُونه ](۱)خېلخانه ، خاندان ، قبیله ، کورنۍ
مکافات د کوم ګناه د کوم شامت دے
چې ډېر مېرجمله شو درست ټبر (خوشحال)
(۲)ښځه ، ارتینه ، بېګم ـ

**ټبکے** :- (ټ + ب + کے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ټبکي ]ډوغله ، غار ، ټبلۍ

**ټبلۍ** :- (ټ + ب + لۍ) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]و ـــــــــ ټبکے ـ

**ټبوټبوک** :- (ټ + بُو + ټ + بُو + ک) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]غرئیز بلبل ـ

**ټپ** :- (ټ + پ) [پ ، اس ، مذ ](۱)روند ، په سترګو معذوره
ټپ راندۀ وي عاشقان د یار له عیبه
تۀ ټپ روند د هغه یار په هُنرمه شه (رحمن)
(۲)داغ (۳)پرهر ، زخم (۴)د وهلو آواز (۵)کتاب بندول (۶)کمزورے مانده ، ډنګر (۷)ډېران ، ټب (۸)ب ، خ ، د کیرړې ونه (۹)د صفت د پاره د سابقې په ډول استعمالېږي ـ

**اخستل** :- (اف) اص (۱)ګذار زغمل یا سهل (۲)د زخم قصاص یا بدل اخستل ـ

**اوچتول** :- (ب ، خ) اص (۱)ډېران لرې کول (۲)د ډېران سره پټې ته د اچولو د پاره وړل ـ

**اوچېدل** :- اص ، ټپ وچېدل ، خشکېدل ، ببخي وچېدل ـ

**تپ اُودرول** :- اص ، ببخي اودرول په ځاے اودرول ، ټپ درول ، قدم اخستو ته نۀ پرېښول ـ

**اودرېدل** :- اص ببخي اودرېدل ، په ځاے اودرېدل ، ټپ درېدل ، قدم نۀ اخستل

**بندول** :- اص ، بالکل بندول ، ببخي بندول ـ

**ترل** :- اص ، ببخي ترل ـ

**جوړول** :- (ب ، خ) اص ډېران جوړول ، ټب جوړول ، خزله په یو ځاے جمع کول

**خوړل** :- اص ، ژوبل کېدل ، زخمي کېدل ـ

**درول** :- اص و ـــــ اُودرول ـ

**درېدل** :- اص و ـــــ ټپ اودرېدل ـ

**رندېدل** :- اص ، ببخي رندېدل ، په ټپو اودرېدل ، نظر نۀ لګېدل ، په ټپو کښېناستل ـ

**روند** :- اص ، ببخي روند ، په دواړو سترګو معذوره
یائې مرد بېلتانۀ د غمه زړ وے
یا په دواړو سترګو ټپ روند په نظر دے (حمید)

**زغمل** :- اص ، ګذار زغمل ـ

**غوایه** :- اص مانده غویاے ، کمزورے غوایه ، ډنګر غوځکے ـ

**کنېدل** :- اص ، ببخي کنېدل ، په غوږونو نۀ اورېدل ـ

**کول** :- اص ، کتاب بندول ـ

**کېدل** :- اص ، (۱)کتاب بندېدل ، کمزورے کېدل ، مانده کېدل ـ

**وچېدل** :- اص ، و ـــــ ټپ اوچېدل ـ

**په ټپ تربل** :- (ب ، خ) اص ، څۀ ببکاره څیز په ډېران غورزول ، څۀ څیز فضول شمارل ـ

**په ټپو کښېناستل** :- اص و ـــــ ټپ رندېدل ـ

**ټپا** :- (ټ + پا) [پ ، اس صو ، مذ ] (۱)په یو مخ د تارې ټکولو یا د وهلو آواز ، ټپار (۲)د چت نه د اوبو څڅېدو پرله پسې آواز ـ

**ټپار** :- (ټ + پا + ر) [پ ، اس ، صو ، مذ ] ـــــ ټپا ـ

**ټپال** :- (ټ + پا + ل) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ټپالان ، ټپالونه ]
(۱)زغل ، منډه ، چاځ قلنه (۲)پیغام وړنه ، خبر رسونه (۳)د خرو یا د کچرو د مزدورۍ د پاره د زغلولو کار ـ

**کول** :- اص ـ د خرکارانو سره خرُونه کچرې چلول ـ

**وړل** :- (اف) اص ، خبر رسول ، پیغام وړل ـ

**وهل** :- اص (۱)په منډه تلل ، تېز تلل ، زغاښتل (۲)خرونه ، کچرې په منډه زغلول ـ

**په یوۀ ټپال تلل** :- (اف) اص په یوه منډه تلل ، ډېر تېز تلل ـ

**په یوۀ ټپال راتلل** :- (اف) اص ، په منډه راتلل ، ګړندے یا بېړندے راتلل ـ

**ټپالوک** :- (ټ + پا + لو + ک) [اف: پ (قاموس) اس ص ، مذ (مؤ : ټپالوکه ]
د ټپالې په شان ، د ټپالې غوندې ، د ټپالې په څېر ـ

**تپالي** :- (تپ + پا + لي) [اف: پ (قاموس) اس ص ] (۱) د خرکارانو مزدور چې خُرونه او کچرې چلوي ـ (۲) استازي ، خبر یا پیغام رسوُونکې ـ

**تپ تپ** :- (تپ + پ + تپ + پ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) قهر غُصه (۲) د دوؤ څیزونو د یو بل سره د وهلو نه پس چې کوم آواز راوزي

**کول** :- (اف) اص ، (۱) قهرغصه کول (۲) د تپ تپ آواز کول ـ

**تپتپانې** :- (تپ + پ + تپ + پا + نې) [پ (ظفر) اس ، مذ ]تپتپانې ، الاداد ، د ماشومانو یوه لوبه ـ

**کول**:- اص ، تپتپانے کول ، الاداد کول ـ

**تپتپاني** :- (تپ + پ + تپ + پاني) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ]و ـــــ تپتپانې

**کول** :- (اف) اص و ـــــ تپتپانې کول ـ

**تپتپنې** :- (تپ + پ + تپ + پ + نې) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تپتپني ]ټکټکې ، ډگډگې ، موټر سائیکل ـ

**تپتور** :- (تپ + پ + تپ + و + ر) [پ ، اس ص ، مذ (مؤ ، وا: تپتوره ج: تپتورې )]هغه څوک چې د سترگو دید ئې کمزورے وي ـ

**تپ تیپ** :- (تپ + پ + تي +پ) [پ (ظفر) اس ص ، مذ ]کمزورے مانده ، ډنگر

په ځواني کښې ئې تپ تیپ لکه همزه کړم
بېلتانۀ مې گوتې کښېښودے په ولیو (علیخان)

**تپرا** :- (تپ + پ + را) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) بربدلے ، ډار شوے ، ترهېدلے ، ویرے اخستے ـ (۲) احتیاطي ، خیال ساتُونکے ـ (۳) کرکجن ، نفرت کوُونکے ـ (۴) کمزورے ، سست ـ

**کول** :- (اف) اص ـ (۱) بېرول ، ډارول ـ (۲) کرکه کول ، نفرت کول ـ

**کېدل** :- (اف) اص ـ (۱) بېربدل ، ډاربدل ـ (۲) کرکه کېدل ، نفرت کېدل ـ (۳) کمزورے کېدل ، سست کېدل ـ

**تپربدل** :- (تپ + پ + رې + د + ل) [اف: پ (قاموس) مص لا] (۱) د رندو په شان په ویره ویره قدم اوچتول ـ (۲) په احتیاط تلل ـ (۳) مینه کول ، زړۀ لگول ـ

**تپربدنگ** :- (تپ + پ + رې + د + ن + گ) [اف: پ (قاموس) حمص ] و ـــــ تپربدنه ـ

**تپربدنه** :- (تپ + پ + رې + د + نه) [اف: پ (قاموس) حمص ] (۱) تپربدنگ ، تپربدۀ ، د ړوند په شان په ویره ویره قدم اوچتونه (۲) په احتیاط تلنه ، خیال ساتنه (۳) مینه کونه ، شفقت کوَنه

**تپربدُونکے** :- (تپ + پ + رې +دُو + ن +کے) [اف: پ (قاموس) فاع ، مذ ، وا ، ج: تپربدُونکي (مؤ: تپربدُونکې )] (۱) د ړُوند په شان په ویره ویره قدم اخستونکے (۲) احتیاط کوُونکے (۳) مینه کوُونکے ، شفقت کوُونکے

**تپربده** :- (تپ + پ + رې + ده) [اف: پ (قاموس) حمص ]و - تپربدنه

په دُنیا تپربدۀ هېڅ څۀ پکار نۀ دے
څۀ څملې لـه دې بوډۍ غاړه غړۍ (حمید)

**تپر** :- (تپ + پَ + ړ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱) تپن تپاټ ، موم جامه ، ترپال (۲) د بُوسو د کوري د ترلو رسۍ ـ

**تپرا** :- (تپ + پ + ړا) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تپراگان ]د کُلال هغه آله چې د خاورو لوښي پرې هوارَوي (۲) گرمالـه ، د چیکړو د لیوآلـه تپنا

**تپرسو** :- (تپ + پ + ړ + سو) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]یو قسم وابنۀ چې اکثر په غنمو کښې راټوکېږي ـ

**تپس** :- (تپ + پَ + س) [پ اس ، مذ ، وا ، ج: تپسان ] (۱) تپوس ، غلیواز ، یو مردار خور مارغۀ ، لم ځټ (۲) سست ، بې کاره او ناراسته کس ـ

**تپسارے** :- (تپ + پ + سا + رے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]تپسورے ، مرتازه ، عاجز ، ناتوانه ، بې وسه ـ

**تپسورے** :- (تپ + پ + سو + رے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ وا ، ج: تپسوري :تپسورې )] و ـــــ تَپسارے ـ

**تپک** :- (تپ + پَ + ک) [اف : پ (قاموس ، اس ، مذ (مؤ : تپکې )] (۱) سخت بیمار ، ډېر کمزوره شوې او پرپوتے بیمار (۲) د غُنډسکې یا پنډوس یو قسم لوبه ـ

**تپکے** :- (تپ + پ + کے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تپکي ] (۱) ورکوټے زخم یا پرهر (۲) غار ، سوُړه (۳) خندق ، کنده ـ

**تپل** :- (تپ + پ + ل) [پ ، مص مت ]و ـــــ تاپل ـ

**تپلن** :- (تپ + پ + ل + ن) [اف: پ (قاموس ) اس ، مذ ( مؤ وا: تپلنه ، ج: تپلنې )]ننکر وهلے ، داغي ، برگ مخے ، تپلے ، تپن ، تکي تکي مخ واله ـ

**تپلے** :- (تپ + پ + لے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تپلي ]و ـــــ تپلن

**تپلے** :- (تپ + پ + لے ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج : تپلي (مؤ: تپلې )] (۱) کمزورے ، سست ، مانده (۲) خصي کړے ـ

**تپن** :- (تپ + پ + ن) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ ، وا: تپنه ، ج: تپنې )] و ـــــ تپلن ـ

**تپنا** :- (تپ + پ + نا ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]و ـــــ تپرا ـ

**تپڼ** :- (تپ + پ + ڼ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تپنرُونه ]و ـــــ تپر ـ

**تپو** :- (تپ + پو ) [اف: پ ( قاموس ) اس ، مذ ، وا ، ج: تپوگان ]تاپو ، برج ، اتارے ـ

**تپوس** :- (تپ + پو + س) [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: تپوسان (مؤ وا: تپوسه ، ج: تپوسانې )] و ـــــ تپس

په خپل خوې د باز قیمت دے
پـه خپل خوې دې تپوس خوار (خوشحال)

**تپوسۍ** :- (تپ + پُو + س + ۍ) [پ ، اس ، مؤ ]یو قسم کونتره

باز د جال کوتره ووینې پرور شي
تپوسۍ بـانـدې پېرې کا لروبر (خوشحال)

**تپوک** :- (تپ + پُو + ک) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: تپوگان ] (۱) پوستین (۲) تماچه ـ

**تپول** :- (تپ + پ + و + ل) [پ ، مص مت ] (۱) تپ کول ، بند کول (۲) تپ ورکول (۳) شاباشے ورکول (۴) لمسول (۵) گذار ورکول ، وهل ډب ورکول ـ

**پتون تپول** :- اص پتون ته تپکي ورکول ، د مقابلې بلنه ورکول ، مقابلې ته یاربدل ، اکثر پهلوانان د کشتۍ نه وړاندې یو بل ته پتون تپوي ـ

**پرچاتپول** :- (اف) اص (۱) په چا تورتپل ، څوک بدناموُل (۲) پـه چا د څۀ څیز د حاصلولو تولې لارې چارې بندول ـ

**پـه ملا تپول** :- اص (۱) پـه ملا تپکي ورکول ، شاباشے ورکول (۲) څوک چاته لمسول ـ

**تپوُونکے** :- (تپ + پ + وُو + ن + کے) [پ ، اس فاع ، مذ ، وا ، ج: تپوُونکي (مؤ: تپوونکې )] (۱) تپ کوُونکے ، بندوُونکے (۲) تپکي ورکوُونکے ، شاباشے ورکوُونکے ـ

**ټپونه** :- (ټ + پ + و + نه) [پ ، حمص] (۱) ټپ کونه ، بندونه (۲) ټپکي ورکونه ، شاباشې ورکونه.

**ټپه** :- (ټ + په) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ] هغه دریځه یا کړکۍ شان چې د پاس فرش کښې د مکان لاندې حصې طرف پرېښودلې شي.

**ټپه** :- (ټ + په) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټپې] (۱) د پښتو شاعرۍ یومخصوص صنف چې دوه حصې لري ، اوله حصه ئې نهه سېلابه یا څپې او دویمه حصه ئې دیارلس سېلابه یا څپې لاري ، دې ته لنډۍ هم وائي

لکه: د دُنیا درې ورځې ژوندون دے
پرون راغلې ، نن دلې ، صبا به ځمه !

(۲) چاپ ، مُهر ، نخښه ، کرامت.

**لړه کول** :- اِص ، ټپه وئیل ، په زوره ټپه آورول.

**لګول** :- اِص ، (۱) مهر لګول ، چاپ لګول ، په څۀ څیز د خپلولو دعوي کول.

**وئیل** :- اِص ، و ———— ټپه لړه کول.

**ټپه ټغره** :- (ټ + په + ټ + غ + ره) [اف: پ (قاموس) ص ، مؤ] ډېره نیستي ، غریبي ، خواري ، لُوڅ ، لغړتوب

**کېدل** :- (اف) اِص نیستمن کېدل ، غریبېدل ، خوارېدل ، لُوڅ لغړ کېدل.

**ټپۍ** :- (ټ + پۍ) [اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ] تاپے ، څپیاکه ، غوشویاے

**ټپي** :- (ټ + پي) [اف: پ (قاموس) ص ، مذ ، ج: ټپیان (مؤ ، ج: ټپیانې)] زخمي ، داغلے.

**ټپي کول** :- (اف) اِص زخمي کول ، داغل.

**کېدل** :- (اف) اِص زخمي کېدل ، داغلے کېدل.

**ټپي کول** :- (اف) اِص زخمي کول ، داغل.

**کېدل** :- (اف) اِص زخمي کېدل ، داغلے کېدل.

**ټَپي** :- (ټ + پي) [پ (ګن) اِس ، مؤ] سائي ، بیانه ، بیعانه

**اخستل** :- (ګن) اِص ، سائي اخستل ، د قیمت څۀ حصه پېشګي اخستل.

**ورکول** :- (ګن) اِص ، سائي ورکول ، د قیمت څۀ حصه پېشګي ورکول

**ټپے** :- (ټ + پے) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ] (۱) د جوړُونو درد ، پښې بادنیول (۲) په قمیص د کشیدې کار

**ټپي مار** :- (ټ + پي + ما + ر) [پ (ظفر) اِس ، مذ] یو قسم ورکوټے او نرے مار ، چمچمار ، چې یو لوېشت قدر اوږد او ډېر نرے وي ، اکثر په مېره کښې دغو شیانو لاندې پروت وي.

**ټپین** :- (ټ + پي + ن) [اف: پ (قاموس) ص ، مذ (مؤ ، وا: ټپینه ، ج: ټپینې)] تپي تپي ، ټکي ټکي ، داغدار ، ننکو وهلے.

**ټت** :- (ټ + ت) [پ ، اس ، مذ (مؤ ، وا: ټته ، ج: ټتې)] (۱) ټرت ، قرت ، عبث او فضول خبره بکَواس (۲) دا ټکے فضولې خبرې کوُونکي سړي د پاره هم استعمالولے شي (۳) تیز ، باد ، ټرت

**ټت کول** :- اِص ، عبث خبرې کول ، فضول ږغېدل ، ټت پت کول.

**ټتار** :- (ټ + تا + ر) [پ ، اِس ، مذ] (۱) ټرتهار ، ټرتېدنه ، فضولې خبرې (۲) پرله پسې تیزونه

**پرلګېدل** :- اِص ، په دستو کېدل ، په یو مخ ټیرونه پرېښول ، باد نۀ ټینګېدل.

**ټت پت** :- (ټ + ت + پ + ت) [پ ، اِس ، مذ] ټرت پرت ، بې هوده او فضول خبرې ، ټېتے پېتے.

**کول** :- اِص ، بېهوده خبرې کول ، عبث خبرې کول ، پوچ ږغېدل.

**ټېتې پېتې کول** :- اِص (۱) فضول خبرې کول ، پوچ ږغېدل (۲) بې ځایه فخر کول ، لافې کول.

**ټت ټت** :- (ټ + ت + ټ + ت) [پ ، اِس ، مذ] (۱) ډېرې خبرې قرتې (۲) لافې ، د فخر او لوے خبرې.

**ټتنګه** :- (ټ + تَ + ن + ګه) [اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټتېنګې] یو قسم چرچنه.

**ټتنه** :- (ټ + ت + نه) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټتېنې] د وړې ماره ښځه ، کړتۍ ، کړتنه ، ټتۍ.

**ټتو** :- (ټ + تُو) [پ ، اِس ، مذ] ټېتے ، دوړې مار ، بکواسي ، عبث ږغېدُونکے

**ټتول** :- (ټ + ت + و + ل) [پ ، مص مت] (۱) د چانه عبث خبرې ویستل ، په عبث خبرو سر کول ، په اوتو بوتو وئیلو سر کول ، فضول ږغول (۲) ب ، خ ، بدکاري ورسره کول.

**ټتۍ** :- (ټ + تۍ) [پ ، اِس ، مؤ] ټتنه ، کړتۍ

**ټتے** :- (ټ + تے) [پ ، اِس ص ، مذ ، وا ، ج: ټتي (مؤ: ټتۍ)] (۱) بکواسي ، د وړے مار ، پُوچ ږغېدُونکے ، ټتو (۲) بې مغزه.

**ټتي** :- (ټ + تي) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ] فضولې خبرې ، عبث خبرې.

**ټتې** :- (ټَ + تې) [پ ، اِس ، مؤ] ټرتې ، فضولې خبرې ، عبث خبرې ، بکواس

**کول** :- اِص عبث خبرې کول.

**ټتېدل** :- (ټ + تې + د + ل) [پ ، مص] ټرتېدل ، لوېدل ، عبث خبرې کول ، ټت ټت کول.

**ټتېدنه** :- (ټ + تې + د + نه) [پ ، حمص] ټرتېدنه ، لوېدنه ، عبث خبرې کونه ، ټت ټت کونه.

**ټټ** :- (ټ + ټ) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ] (۱) لافې شافې (۲) کبر ، لوئي ، غرور

**په ټټ کښې کېدل** :- (اف) اِص مغروره کېدل ، کبرجن کېدل ، لوئي کول ، ځان په اوچتو پایو کښې شمېرل.

**ټټ** :- (ټ + ټ) [اف : پ (قاموس) اِس ، مذ] مس تانبه.

**ټټار** :- (ټ + ټا + ر) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټټاران (مؤ ، وا: ټټاره ، ج: ټټارانې)] مس ګر ، ټټاري ، د تانبې لوښي جوړوُونکے.

**ټټارے** :- (ټ + ټا + رے) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټټاري] ټیټارے ، یو مارغۀ چې د خپل آواز د وجهې دا نوم پرې کښېښولے شے دے ، دا د سپوږمۍ په شپه په الوتو کښې د ډېر اُوچت ځاے نه آواز کوي ، وائي چې ټیټارے آواز وکړي نو باران کېږي ، ټیټغه ، ټټغے ، ټټوغے ، ټټوے ، ټټېوټ

**ټټاري** :- (ټ + ټا + رِي) [اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ] شور فریاد ، شور زوږ.

**ټټارے** :- (ټ + ټا + رَے) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټټاري] یو ورکوټے مارغۀ ، باران غوښتونکے مارغۀ.

**ټټخه** :- (ټ + ټ + خه) [اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټټخې] سینه ، ټټر

**ټټر** :- (ټ + ټ + ر) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټټرُونه] سینه ، ټټخه

چې یو دم د عشق له اوره خالي نۀ وي
خُدایه څۀ دې د عاشق ټټر منقل کړ (خوشحال)

بې د تېغ له آبه نورې اوبۀ نیشته
چې جنګجوئ سره ساړه که ټټرونه (خوشحال)

**ابنبودل** :- اص ، سینه پرې لګول ،

زندګي که مې له اوره اُوبو نهٔ شي

تل هم نهٔ دے هیچا ابنبے پرې تیټر (رحمن)

**سرول** :- اص،تیټریخول ، د زړهٔ تسلّه اوسود پرې کول ، د زړهٔ ارمان ویستل

څهٔ کړم نهٔ پوهېږم دا فلک سفله پرور

لاس رسېدے دربغه چې پرې سوړ کړلے تیټر (خوشحال)

**وهل** :- اص (۱)سینه وهل سینې ته څپېړې راخلاصول ، څوک ژړل ، ویرکول

لـه اولـه تـیټر اووهـم بـیا آه کړم

په نارو نارو خروس د صبحګاه یم (رحمن)

(۲)ذمه اخستل

**تیټر یخول** :- اص و ــــــــ تیټر سړول۔

**یشېدل** :- اص (۱)غُصه کېدل ، د غصې لـه کبله د سینې تـاؤ اخستـل (۲)خفه کېدل

ورونه که زویه د خپل غرض دي

پـه کار کـښې یشي تیټر د هر چا (خوشحال)

**په تیټر داغ ابنبودل** :- اص ، خفه کول ، زهیرول ، تکلیف او سوخت رسول

یو یو داغ په تیټر ابنبے د هر چا دے

که بادشاه د ولایت دے که ګدا دے (رحمن)

**په تیټرداغونه نګینه کېدل** :- اص ، د چا د تسه د زړهٔ تـاؤ او دړد څرګندېدلـد زړهٔ داغونه څرګندېدل

لکه ستورې چې بربېښناکه په آسمان کښې

پـه تـیټر مـې سـتا داغـونـه نګـیـنه دي (رحمن)

**په تیټر ښوربدل** :- اص،په سینه زنګېدل یا للبدل ، په تیټر پېرونه خوړل

سـخ د آئـینې دے چـې د مـخ وته تل ګوري

سخ د لونګ ین دے چې د پاس په تیټر ښوري (خوشحال)

**په تیټر کښې ښخېدل** :- اص(۱)په سینه کښې ښخېدل (۲)اثرکول

څو سل خاره ئې ښخ نهٔ شي په تیټر کښې

کـلـه وي چـې د بـلـبل د ګل ته لاړ وي (رحمن)

**تیټری** :- (ټ + ټ + ری) [اف: پ (قـاموس) اس ، مؤ ]صدرى ، هغه واسکټ شان چې په کېږه کښې مالوچ واچوي ، وي ګنډي او پـه یخنی کـښې ئې استعمالوي۔

**تیټرے** :- (ټ + ټ + رے) [اف پ (قاموس) اس ، مذ ]سینه بند۔

**تیټک** :- (ټ + ټ + ک) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]ټککه ، د یُوم هغه پـڅ اړخ چې په یُوم کار کوُونکے پښه پرې کېښږي او زور پرې کوي۔

**تیټن** :- (ټ + ټ + ن) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ ، وا : تیټنه ، ج: تیټنې)] ټرتن ، تیټو ، کرټو ، خوشه ټارے۔

**تیټنګ** :- (ټ + ټ + ن + ګ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ وا ، ج: تیټنګونه ] (۱)بیابان ، مېره (۲)خالي لاس ، تش لاس نېشتي (۳)په افغانستان کښې په سمت مشرقي کښې یوه علاقه۔

**کول** :- (ظفر)اص ، څهٔ څیز نایاب کول ، څهٔ شې د بازارنه غائبول۔

**کېدل** :- (ظفر) اص څهٔ څیز نایاب کېدل ، څهٔ شې د بازار نه غائبېدل۔

**څهٔ څیز تیټنګ کول** :- (ظفر) اص ، څهٔ څیز ورکول ، نایاب کول۔

**تیټو** :- (ټ + ټو) [اپ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: تیټوګـان ، تیټوان (مؤ ، وا ، تیټوه ، ج: تیټوې)]وړوکے آس ، ټیټ شان اس

تازي سوار دے پکښې پاتې

څـهٔ تـیـټو څـهٔ تـاز دے (خوشحال)

دا زمـا هـم ګـلـه ده د تـیـټـوانـو

رائے وُښیه چې کوم پکښې تفچاق دے (خوشحال)

**پیدا کېدل** :- اص تیټوزېږېدل ،

د ګـنده تـیـټونـه بد تیټو پیدا شي

ښهٔ اسونه د مېدان راوړي ښهٔ مور (خوشحال)

**راتلل** :- اص ، تیټو اخستل او کور ته راوستل

چې په کور کښې مې اول تیټو راغلے

زما بـخـت وو لااول لـه ځـایه تور (خوشحال)

**خپل تیټو او د بل اس برابرول** :- مـح ، خپـل لږ څیز د بـل د لـوے څیز سره برابر شمارل

که څوک تله د انصاف درته په لاس کا

خـپـل تـیټو او د بـل اس به برابر کړي (رحمن)

**تیټوبه** :- (ټ + ټو + بـه) [اپ (ظفر) اس ، مؤ ، وا ، ج: تیټوبې ]ملنډه ، خنـدا ، پچموزه ، ټوقه۔

**جوړول** :- (ظفر) اس په چا پورې د خندا په نیت ملنډې کول ، تماشا جوړول ، ټوقې کول۔

**تیټوبې کول** :- (ظفر) اص ملنډې کول ، خندا کول ، پچموزي کول۔

**تیټوغے** :- (ټ + ټو + غے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ او ــــــــــ تیټارے۔

**تیټوګے** :- (ټ + ټو + ګے) [اپ اس تصغیر ، مـذ ، وا ] ورکوټے تیټو مانده او خوار تیټو

د تـیـټـونـه هـم تـیټوګـي زېـږي

که ایغرے د عرب یا د عراق دے (خوشحال)

**تیټوه** :- (ټ + ټ + وه) [اپ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تیټوې ]د تیټو ماده ، وړه اسپه

اسپې اسونو ته ساتلې شي

تیټوے خرونو سره شـرلے شي (خوشحال)

**تیټوے** :- (ټ + ټ + وے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ او ــــــ تیټارے

**تیټی** :- (ټ + تی) [اپ ه: تیټي ، اس ، مؤ ، وا ، ج: تیټیانې ](۱)ټـاټی ، د لویـو بولـو ځـاے (۲)اف: د قـافلې یـا کـاروان د پـاتې کېـدو ځـاے ، کـاروان سرائے

(۳)بولې ، ډکې متیازې ، غل

**کـول** :- اص (۱)لویـو بولـو تـه کښېناسـتل ، ډکـې متیـازې کـول ، غُـل کـول (۲)ځان پړه ول ، په څهٔ وعده پوره کولو کښې پاتې راتلل۔

**تیټیرے** :- (ټ + تي + رے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]ټیټارے۔

**تیټیغے** :- (ټ + تي + غے) [اف: پ ، اس ، مذ ]و ــــــــــ تیټارے۔

**تیټیوټ** :- (ټ + تي + و + ټ) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ] و ــــــ تیټارے۔

**تیچ** :- (ټ + چ) [اپ ، اس ، مذ ](۱)د پُوکنۍ د شلېدلو آواز (۲)قوت ، طاقت ، زور

**وتل** :- اص ، بې طاقته کېدل ، زور کمېدل۔

**تیچ** :- (ټ + چ) [اپ ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا: تیچه ، ج: تیچې)]کم قیمتـه ، بـې قـدره پرېوتے ، سپک

تـهٔ چـې خـیال په زر زرې جامو کړے غُچ

د آسـمان سـتوري بـه نـهٔ شـي پـه دا مچ (خوشحال)

**تیچ** :- (ټ + چ) [انګ ، اس ، مذ ]لاس لګونه ، ګوتې وروړنه۔

**کول** :- اص ، لاس وروړل ، ګوتې پرې لګول۔

**ټچ کېدل** :- اِص ، لاس پرې لګېدل ، ګوتې پرې لګېدل ـ

**ټچ بټن** :- (ټ +چ +ب +ټ +ن) [انګ ټچ ، اِس ، مذ ]هغه بټنې چې د یو بل سره په زور ورکولو نښلولې شي ـ

**لګول** :- اِص ،هغه خاص قسم بټنې لګول چې په زور ورکولو نښلولې شي ـ

**لګېدل** :- اِص ، هغه بټنې لګېدل چې په زور ورکولو سره نښلولې شي ـ

**ټچ سسټم** :- (ټچ + س + س + ټ + م) [انګ ، اِس ، مذ ]د ټائپ کولو هغه چل چې ټائپ کوُونکے په یو یو ټکي ګوته کښېږدي او ټائپ کوي ـ

**ټُمخلی** :- (ټ + خ + لی) [اف : پ (قاموس) اِس ، مؤ ]اخولي ، خولي ، هغه ټوپۍ چې غوږونه پکښې پټ وي ـ

**ټمخمخ** :- (ټ +خ +مَ +خ ) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]تیت ، خوروور ، پریشان، ګډوډ ـ

**کول** :- (اف) اِص ، تیت کول ، ګډوډ کول ، خوروور کول ـ

**کېدل** :- (اف) اِص، تیت کېدل ، خور وور کېدل ، ګډوډ کېدل ـ

**ټـر** :- (ټ + ر ) [اپ ، اِس صو ، مذ ](۱)د چندخ آواز ، ټرا (۲)عبث خبرې ، بکواس ، فضولې خبرې (۳)د تیز آواز ـ

**اچول** :- اِص ، (۱)تیز اچول ، (۲)تښتېدل (۳)د مقابلې نه په شا کېدل

**کول** :- اِص ، غږ کول ـ

**وهل** :- اِص ، فضولې خبرې کول ، عبث غږېدل ، پُوچ لوېدل

**ټـرا** :- (ټ + را ) [اپ ، اِس ، مؤ ، مذ ](۱)د چندخې آواز (۲)عبث خبره ، فضوله خبره

**ټرا** :- (ټ + ر + را ) [ه ، اِس ، مؤ ]یو قسم دیسي شراب ـ

**ـــ جوړول** :- اِص ، دیسي شراب جوړول ـ

**ـــ څښل** : – اِص دیسي شراب څښل ـ

**ټرا وهل** :- اِص ،دیسي شراب څښل ـ

**ټرافي** :- (ټ + را + في) [انګ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټرافیانې ]د لوبو په مقابله کښې د انعام په ډول ورکولے کېدُونکے لوے کپ ـ

**ټـراک** :- (ټ + را + ک) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، دا ج: ټراکان ]چتے ، چترکے ، یو ورکوټے مرغے ـ

**ټرالي** :- (ټ + را + لي) [انګ ، اِس ، مؤ ]ورکوټے شان ګاډے ـ

**ټرام** :- (ټ + را + م) [انګ ، اِس ، مذ ]ټریم ، په بجلۍ چلېدُونکے ګاډے چې په سړک د اوسپنې په پاټلۍ چلېږي ، ورکوټے رېل ګاډے ـ

**نیول** :-اِص ، ټرام ته په وخت رسېدل او پکښې سوارېدل ـ

**ټراموے** :- (ټ + را + م + وے) [انګ ، اِس ، مؤ ]ټریموے ، د اوسپنې د پاټلو سړک چې ټرام پرې باندې چلېږي ـ

**ټرانســپورټ** :- (ټ + را + ن + س + پـو + ر + ټ) [انـګ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: ټرانسپورټونه ](۱)د سامان یا مال اسباب د یو ځاے نه بل ځاے ته استول (۲)لارۍ ، ټرک ، جهاز ، کشتۍ د کچرو یا د اوښانو ګاډي یا نور څۀ قسم باربرداري چې مسافر او مال اسباب د یو ځاے نه بل ځاے ته وړي راوړي ـ

**ټرانسپورټر** :- (ټ + را + ن + س + پو + ر + ټ + ر) [انګ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټرانسپورټران ]د ټرانسپورټ مالک ، د ګاډو څښتن ـ

**ټرانس فارمر** :- (ټ + را + ن + س + فار + م + ر) [انګ ، اِس ، مذ ] د بجلۍ طاقت زیاتوي او کموي او په مناسب مقدار د هغې نه بجلي نورو لائنونو ته رسي ، دې ته په نورو ټکو کښې مونږ د بجلۍ د کمولو زیاتولو درنګ وئیلے شو ـ

**ټرانسفر** :- (ټ + را + ن + س + ف + ر) [انګ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټرانسفروونه ] تبدیلي ، بدلي ـ

**ټرانسفر کول** :- (اِص)بدلول ، تبدیل کول ، د یو ځاے نه بل ځاے ته لېږل ـ

**کېدل** :- اِص ، بدلېدل ، تبدیل کېدل ، د یو ځاے نه بل ځاے ته لېږلے کېدل

**ټـرانس مټـر** :- (ټ +را + ن+ س + م + ټ + ټ + ر) [انـګ ، اِس ، مـذ ] هغه مشین چې د بجلۍ او د هوا د څپو په ذریعه آواز بغېر د تار نه د یو ځاے نه بل ځاے ته رسوي ـ

**ټـراوو** :- (ټ + را + وو) [اف: پ (قاموس) اِس ، ص ]ټرون ، ټرو ، فضول ږغېدُونکے ، پُوچ ، خُلے ، ټرے ـ

**ټرائي** :- (ټ + را + ئي) [انګ ، اِس ، مؤ ](۱) کوښښ (۲)د درزي په دوکان په خپل ځان خپله جامه برابرونه (۳)د موټر لارۍ د چل زده کوُونکي نه امتحان اخستنه ـ

**اخستل** :- اص (۱)د درزي په ګاهک باندې جوړې کړې جامې برابرول (۲)د ذمه وار اهلکار د ډرائیورۍ د لائسنس اخستوُنکي نه د ګاډي چلولو امتحان اخستل ـ

**کول** :- اِص ،کوښښ کول ، محنت کول ـ

**ورکـول** :- اِص ، (۱)د درزي په دوکان خپلې جامې په ځان برابرول (۲)د ډرایورۍ امتحان ورکول ـ

**ټرائیسېکل** :- (ټ + را + ئي + سې + ک + ل) [انګ ، اِس ، مذ ، وا ]د دریو پایو سائیکل چې د بائیسکل په شان په پښو چلولے شي ـ

**ټربـائین** :- (ټ + ر + بـا + ئـي + ن) [انـګ ، اِس ، مـذ ]هغه څرخ چې د اوبو په ذریعه چُورلي او بجلي پېدا کوي ـ

**ټربـائین سسټم** :- (ټربـائین + س + س + ټ + م) [انګ ، اِس ، مـذ ]د اوبو په ذریعه د څرخ د چُورلېدو په ذریعه د بجلۍ پېدا کولو طریقه ـ

**ټرپر** :- (ټ + ر + پ + ر ) [اپ ، اِس ، مذ ]عبث خبرې ، پُوچې خبرې ، ټرت پرت ، ټر ټر

**کول** :- اِص عبث خبرې کول ، پُوچې خبرې کول ، ټرت پرت کول، ټر ټر کول ـ

**ټرت** :- (ټ + ر + ت) [اپ ، اِس ، صو ، مذ ]ټر ، د تیز آواز ـ

**ټرتـاوا** :- (ټ +رَ +تـا + وا ) [اپ (سو ) اِس ، مـؤ ]بې غمي ، خوشحالي ، مزې ، چرت

**ټرت پرت** :- (ټرت + پ + ر + ت) [اپ ، ص ، مذ ]و ــــــــــ ټرپر

**اچول** :- (اف)اِص ، [اپ ، اِس ، صو ، مذ ](۱)ټرهار ، په یو مخ د تېزونو آواز (۲)فضولې خبرې ، عبث ږغېدنه ـ

**ټرټـر** :- (ټ + ر + ټ + ر) [اپ ، اِس ، مـذ ](۱)بک بک ، بکواس ، سپورې ستغې خبرې (۲)د چیندخ آواز

**کول** :- اِص ، ټرپر کول ، ټرټېدل ـ

**ټرخاول** :- (ټ + ر + خا + و + ل) [اپ ، ه : ټرخانا ، مص مت ]ځان خلاصول ، بې زړه کار کول ، آنې بانې کول ، په چل ول ځان خلاصول ـ

**ټرسټ** :- (ټ + رَ + س + ټ) [انګ ، اِس ، مذ ](۱)اتبار ، اعتبار (۲)هغه اداره چې څو کسان ئې د خلقو د ښېګړې د پاره جوړه کړي ، او ګټه ئې خپل جېب ته نۀ اچوي ـ

**ټرسټي** :- (ټ + رَ + س + ټي) [انګ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: ټرسټیان ]د ټرسټ

ذمه دار غړے.

**ټرماټر** :- (ټ + ر + ما + ټ + ر)[اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]ټماټر، سرۀ باتينګړ

**ټرن** :- (ټ + ر + ن)[پ ، ص ، مذ (مؤ ، وا: ټرنه ، ج: ټرنې)]‌(۱)ټرو، تيزن (۲)پرندوکے ، پرېدُونکے ، ډارن.

**ټرنک** :- (ټ + رَ + ن + ک)[انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټرنکونه ]د اوسپنې د څادر نه جوړ شوے سپک صندوق

**ټرنک کال** :- (ټ + رَ + ن + ک + کا + ل)[انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټرنک کالونه ]په ټيلفون د لرې ځاے سره خبرې کول د پاره اېرېټر ته خپل او د هغه ځاے نمبر ورکول.

**ټرو** :- (ټ + رُو)[پ ، ص ، مذ ](۱)ټرټرکوُونکے ، کرټُو (۲)ټرن ، تيزن (۳)عبث خبرې کوُونکے ، فضول ږغېدُونکے.

**ټروکاپي** :- (ټ + رُو + کا + پي)[انګ ، اس ، مؤ ]رېښتونې يا مصدّقه نقل ، د څۀ ليک يا دستاوېز هُو بهو يا اصلي نقل ټيک يا حقيقي نقل.

**ايستل** :- (اص)ټروکاپي جوړول ، اصلي نقل ايستل

**جوړول** :- اص و ـــــــ تروکاپي ايستل.

**ټرول** :- (ټ + ر + و + ل)[اف: پ (قاموس) مص مت ](۱)ټرټرکول (۲)په نس کول ، په دستو کول (۳)بدفعلي ورسره کول

**ټرولے** :- (ټ + ر + وَ + لے)[اف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ټرولي (مؤ: ټرولې)](۱)په نس کړے ، په دستو کړے (۲)بدفعلي ورسره کړے.

**ټرونه** :- (ټ + ر + و + نه)[اف: پ (قاموس) حمص ](۱)په نس کونه ، په دستو کونه (۲)بدفعلي ورسره کونه

**ټروُونکے** :- (ټ + ر + وُو + ن + کے)[اف:پ (قاموس) فاع ، مذ ، وا ج: ټروُونکي (مؤ: ټروُونکې)](۱)په نس کوُونکے ، په دستو کوُونکے (۲)بدفعلي ورسره کوُونکے

**ټرهار** :- (ټ + ر + ها+ ر)[پ ، اس ، صو ، مذ ]و ـــــــــــ ټرتهار.

**ټرے** :- (ټ + رے)[اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]و ـــــــ ټراوو.

**ټرے** :- (ټ + رے)[انګ: اس ، مؤ ، وا ، ج: ټرې ګانې ]مجمه ، پتنوس ، رټين ، تانبې يا لرګي هغه هوار شان لوښے چې د چايو ، ډوډۍ لوښي پکښې وړے راوړے شي.

**ټرېټر** :- (ټ + رې + ټ + ر)[انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټرېټران ]باغي ، نمک حرام ، بې وفا ، غدّار

**ټرېټي** :- (ټ + رې + ټي)[انګ ، اس ، مؤ ]معاهده ، لوظ نامه.

**ټرېدل** :- (ټ + رې + د + ل)[پ ، مص لا](۱)ټرټرکول، فضولې خبرې کول ، عبث ږغېدل (۲)د چندخې آواز کول (۳)په دستو کېدل ، نس بهېدل.

**ټرېدلے** :- (ټ + رې + د + لے)[پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټرېدلي ، (مؤ: ټرېدلې)] (۱)ټرټر کړے ، عبث ږغېدلے (۲)چندخې آواز کړے (۳)په دستو شوے ، بهېدلے

**ټرېدنګ** :- (ټ + رې + د + ن + ګ)[اف: پ (قاموس) حمص ]و ـــــ ټرېدنه

**ټرېدنه** :- (ټ + رې + د + نه)[پ ، حمص ](۱)ټرېدنګ ، ټرېدۀ ، ټرټرکونه ، فضول خبرې کونه (۲)د چندخ آواز کونه (۳)په دستو کېدنه ، نس بهېدنه

**ټرېدُونکے** :- (ټ + رې + دو + ن + کے)[پ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: ټرېدُونکي (مؤ: ټرېدُونکې)](۱)ټرټرکوُونکے ، فضول او عبث خبرې کوُونکے (۲)په دستو کېدُونکے.

**ټرېدۀ** :- (ټ + رې + دہ)[پ ، حمص ]و ـــــــ ټرېدنه.

**ټرېډ** :- (ټ + رې + ډ)[انګ ، اس ، مذ ]تجارت ، سوداګري

**ټرېډ مارک** :- (ټرېډ + ما + ر + ک)[انګ ، اس مر ، مذ ]د تجارت يا د خپل صنعت حرفت د پاره څۀ خاص نخښه مقررول ، تجارتي نخښه.

**ټرېډنګ اېجنسي** :- (ټ + رې + ډ + ن + ګ + اې + ج + ن + سي)[انګ ، اس ، مؤ ]د سوداګرۍ او د مال د سودا د دلالۍ ځاے.

**ټرېډنګ کارپورېشن** :- (ټ + رې + ن + ګ + کا + ر + پو + رې + ش + ن)[انګ ، اس ، مذ ]د تجارت اداره

**ټرېژري** :- (ټ + رې + ژ + ري)[انګ، اس، مؤ ]سرکاري خزانه، د خزانې دفتر

**ټرېژرر** :- (ټ + رې + ژ + ر + ر)[انګ ، اس ، مذ ]خزانچي

**ټرېژري آفيسر** :- (ټرېژري + آ + ني + في + سَ + ر)[انګ ، اس ، مذ ]د خزانې افسر ، د خزانې مهتمم.

**ټرېژري چالان** :- (ټرېژري + چا + لا+ ن)[انګ ، اس ، مذ ]هغه چاپ کاغذ چې په خزانې کښې پرې پېسې داخلېږي.

**ټرېس** :- (ټ + رې + س)[انګ ، اس ، مذ ]نخښه نښانه ، چربه ، خاکه ، د څۀ ليک يا نقشې وغېره نقل چې د هغې د پاسه ئې نرے کاغذ اېښے وي او خاکه ئې اخيستے وي.

**اخستل** :- اص خاکه اخستل د نري کاغذ په مدد پخې نقشې عکس جوړول، ټرېس کول.

**کول** :- اص ، (۱)و ـــــــ ټرېس اخستل (۲)پته لګول.

**ټرېفک** :- (ټ + رې + ف + ک)[انګ ، اس ، مذ ]په سړک د سړو او د ګاډو چلند او تګ راتګ ، په ريل ګاډي کښې د مسافرو او د مال اسباب چلند.

**ټرېفک کنټرول** :- (ټرېفک +ک + ن + ټ + رو + ل)[انګ ، اس ، مذ ]د چلند ربې قاعدګۍ قابو کونه.

**ټرېفک مجسټرېټ** :- (ټرېفک +م +ج +س + ټ + رې + ټ)[انګ ، اس ص ، مذ ]هغه عهده دار چې د چلند د مقدمو عدالتي فېصلې کوي.

**ټرېفک منېجر** :- (ټرېفک + م + نې + ج + ر)[انګ ، اس ص ، مذ ]د تګ راتګ او د استولو را استولو حفاظت او بندوبست کوُونکے افسر ، د مال اسباب د استولو را استولو عهده دار ، د چلند مهتمم.

**ټرېکټر** :- (ټ + رَې + ک + ټ + ر)[انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټرېکټران ، ټرېکټرُونه ]هغه مشيني ګاډے چې مزکې پرې هوارولے شي او د کر کروندې پرې کولے شي.

**ټرېم** :- (ټ + رَې + م)[انګ ، اس ، مذ ]و ـــــــ ټرام

**ټرېموے** :- (ټرېم + وے)[انګ ، اس ، مؤ ]و ـــــ ټراموے.

**ټرېن** :- (ټ + رې + ن)[انګ ، اس ، مذ وا ، ج: ټرېنُونه ]ريل ګاډے ، اور ګاډے

**ټرېنډ** :- (ټ + رې + ن + ډ)[انګ ، ص ، مذ ]هغه څوک چې په يوفن يا کار کښې ئې باقاعده تربيت حاصل کړے وي ، تربيت يافته ، تجربه کار ، ماهر.

**ټرېننګ** :- (ټ + رې + نِ + ن + ګ)[انګ ، اس ، مذ ]د څۀ فن باقاعده زده کړه يا تربيت.

**حاصلول** :- اص ، د څۀ فن يا کار باقاعده زده کړه کول ، تربيت مُوندل ، ټرېننګ کول.

**کول** :- اص ، و ـــــ ټرېننګ حاصلول.

**ورکول** :- اِص ، د څۀ فن یا کار باقاعده ورزده کول ، تربیت ورکول۔

**ټرېننګ سکول** :- (ټر ېننګ س + کو + ل )[انګ ، اِس ص ، مذ ]هغه مدرسه یا سکول چې پکښې د یو فن باقاعده تعلیم او تربیت ورکولے شي۔

**ټرېننګ کالج** :- (ټرېننګ + کا + ل + ج )[انګ ، اِس ص ، مذ ]د سکول نه لویه هغه اداره چې پکښې د یو فن په اعلیٰ پېمانه تعلیم او تربیت ورکولے شي۔

**ټس** :- (ټ + س )[پ ، اِس ، مذ وا ، ج: ټسونه ](۱)ګذار ، د څپېړې یا د سخت څیز آواز (۲)د لرګي یا د څانګې د ماتېدلو آواز (۳)وجه ، سبب (۴)د بارودو د چلېدلو کمزورے آواز۔

**ختل** :- اِص (۱)د څپېړې یا د سخت څیز آواز وتل (۲)د لرګي څانګې یا د بل څۀ څیز ماتېدل

**خوړل** :- اِص ، ګذار خوړل۔

**کول** :- اِص (۱)څۀ نامناسبه کار کول(۲)د ماتېدو آواز راختل (۳)د کارتوس یا پټاخې په زوره نۀ چلېدل۔

**ټس ورکول** :- اِص ، ګذار ورکول۔

**د چا د ټسه ورکېدل** :- مح ، د چا د ټسه وطن پرېښول ، د چا د دښمنۍ له کبله وطن نه تښتېدل

پــه یوسف مند نۍ ئې غرړوو د مړانې
اتـمان خـپلو تېښته کړه د دۀ له ټسه (علیخان)

**د چا د ټسه وطن پرېښول** :- مح: د چا د ټسه ورکېدل۔

**ټس** :- (ټُ + س )[اف: پ (قاموس ) اِس ، مذ ، (مؤ ، وا ، ټُسه ، ج: ټُسې)] زوړ څیز ، خوړلے شوے څیز۔

**ټس** :- (ټ +س )[اف: پ (قاموس ) اِس ، صو ، مذ ](۱)هغه آواز چې ښۀ نۀ شي آورېدے ، نرے شان آواز (۲)د جنګ په وخت د دوؤ پېشوګانو آواز

**ټسا** :- (ټَ + سا )[پ ، اِس ، صو ، مؤ ](۱)ټسهار ، د ټس ټس پرله پسې آواز (۲)د اور د بلېدلو په وخت د ټس ټس آواز۔

**ټس پس** :- (ټ +س+ پ+س )[پ ص](۱)عبث ، فضول (۲)ناپائیدار ، کچه

وې ئې غم ښادي خوشحال
دواړه تــوکــه دي ټــس پــس

**ټس ټس** :- (ټ + س + ټَ + س )[پ (ب ، خ ) اِس ، مذ ](۱)پس پس ، ورو ورو خبرې (۲)ورو پټه ژړا

**کول** :- (ب ، خ ) اِص (۱)پس پس کول ، ورو ورو خبرې کول (۲)ورو په پټه ژړل

**ټــس ټُــوس** :- (ټَ + س + ټُــو + س )[پ ، اِس ، صــو ، مــذ ](۱)د څــۀ څیــز د ماتېدلو یا په لرګي د وهلو آواز (۲)د جنګ ننبته

**جوړول** :- اِص ، ټس ټوس کول ، جنګ جګړه جوړول ، وهل ټکول کول

**راتلل** :- اِص ، د څۀ څیز د وهلو آواز په غوږ کېدل۔

**کول** :- اِص،و ـــــــــــ ټَس ټُوس جوړول

**ټسر** :- (ټَ + سَ + ر )[ه ، اِس ، مذ ](۱)کچه رېښم ، معمولي رېښم (۲)یو قسم کپړا

**ټَسري** :- (ټَ + س + ري )[ه ، اِس ، مؤ ]د ټسر نه جوړ معمولي رېښمینه کپړا

**ټســک** :-(ټ+س+ک )[اف: پ (قــاموس ) اِس ، مــذ (مــؤ ، وا: ټســکه ، ج: ټسکې)]یرندُوکے ، ډارن ، بې ښې بې توښې سړے ، بېکاره ، د بل لاس ته ناست۔

**ټسکوره** :- (ټ + س + کو + ره )[اف: پ (قاموس ) اِس ، مؤ ]ټسکوره

**ټســکورے** :- (ټ + س + کــو + ر ے )[اف: پ (قــاموس ) اِس ، مــذ ، وا ، ج: ټسکوري ]هغه ډوډۍ چې په تنور کښې څڅېدلے وي۔

**ټسکے** :- (ټ + س + کے )[اف: پ (قاموس ) اِس ، مذ ](۱)د جنګ په وخت د دوؤ پېشوګانو آواز ، (۲)د ژړا نه ډکې خبرې۔

**کول** :- (اف) اِص ټسکېدل۔

**ټسکېدل** :- (ټ + س + کې + د + ل )[پ ، مص ]ټسکے کول ، ورو ورو ژړېدل ، د ماشوم د چانه په بېلېدو ورو ژړل ، په سلګو ژړل۔

**ټسکېدنه** :- (ټ + س + کې + د + نه )[پ ، حمص ]په سلګو ژړېدنه ، ورو ورو ژړېدنه۔

**ټســکېدُونکے** :- (ټ + س + کــې + دُو + ن + کــے )[پ ، فــاع ، مــذ ، وا ، ج: ټسکېدُونکي (مؤ: ټسکېدُونکې)]په سلګو ژړېدُونکے ، ورو ورو ژړا کوُونکے۔

**ټســلک** :- (ټ +س + ل + ک )[اف: پ (قــاموس ) اِس ، مــذ ]ټســن ، ډارن ، یرندوکے ، پسکن ، ټسو۔

**ټسمس** :- (ټ + س + م + س )[اف: پ (قاموس ) اِس ، مذ (مؤ وا: ټسمسه ، ج: ټسمې)] سست ناراسته ، بېکاره۔

**کول** :- (اف) اِص ، ناراستي کول۔

**کېدل** :- (اف)اِص ، ناراسته کېدل

**ټسن** :- (ټ + س + ن )[اِس ، مذ (مؤ ، وا: ټسنه ، ج: ټسنې)] و ـــ ټسلک

**ټســول** :- (ټ + س + و + ل)[پ ، مــص مــت ]ډېــول ، ډزول ، وهــل ، ټکــول ، غربول

**ټسهار** :- (ټ + س + ها + ر )[پ ، اِس صو ، مذ ]و ـــــــــ ټسا۔

**ټسي** :- (ټ + سي )[اف: پ (قاموس ) اِس ، مؤ ]دروغ ، لاهې شافې ، ټسې۔

**ټسے** :- (ټَ + سے )[پ (ظفر ) اِس ، مؤ ](۱)پسکے (۲)ډُوزې ، لاهې

**وهل** :- (ظفر ) اِص لاهې کول ، ټسې ویشتل ، دروغ وئیل

**ویشتل** :- (ظفر ) اِص و ـــــــــ ټسې وهل۔

**ټسېدل** :- (ټ + سې + د + ل )[پ ، مص لا ]ډزېدل ، ټکېدل ، غربېدل ، وهلے کېدل ، د بُوسو سخے جوړېدل۔

**ټغ** :- (ټ +غ )[اف: پ (قاموس اِس ، مذ ](۱)د سترګو پاسنۍ پرده (۲)شنه قبا (۳)د طوطي په شان یو شین مارغۀ۔

**ټغ** :- (ټ + غ )[پ (ګن ) اِس ، مذ وا ، ج: ټغان ]تېز

**ټغ** :- (ټ + غ )[پ ، اِس صو ، مذ ]د چرګ د نیولو په وخت آواز

**ټغر** :- (ټ + غ + ر )[پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټغرُونه ]د قالین په نمونه د وړو نه جوړ هغه څیز چې په مزکه ئې هواره وي اوبور نۀ لري۔

نۀ پوزې شو تردۀ لاندې
نــۀ تــرې لاندې شۀ ټغر (رحمان)

**ټغکے** :- (ټ + غَ + کے )[اف: پ (قاموس ) اِس ، مذ ](۱)ټغے ، ټُغکے ، د چرګو یو مرض چې ډېر زر چرګان ترې مري (۲)د غصې او کرکې په وخت د وبا مرض په ځاے وئیلے شي (۳)نزله ، زکام

**راتلل** :- اِص ، د ټُغکې مرض عام کېدل ، وبا خورېدل۔

**ټغکے** :- (ټُ + غَ + کے )[پ (ظفر ) اِس ، مذ ]و ـــــ ټغکے

**ټغل** :- (ټ + غ + ل )[پ (ګن ) مص مت ]دوکه ورکول ، ټغول ، ټګېیل ، ټګل۔

**ټغلے** :- (ټ + غَ + لے )[پ (ګن ) مف ، مذ ، وا ، ج: ټغلي (مؤ: ټغلې)] دوکه شوے ، دوکه ورکړے ، ټګېیلے ، ټغولے۔

**تَغمَغ** :- (ټ + غ + مَ + غ)[اف: پ (قاموس) اس ، مذ] سخت زکام چې سينه او پوزه ئې نيولې وي.

**کول** :- (اف) اص ، د زکام مرض زيات تنګول.

**کېدل** :- (اف) اص ، سخت زکام لګېدل.

**تغن** :- (ټ + غ + ن)[پ ، اس ص ، مذ (مؤ ، وا : تغنه ج: تغنې)] (۱) تيـزن ، ډارن

(۲) شور زوږ کوُونکے (۳) ټوخن ، ټوخېدُونکے.

**تغول** :- (ټ + غَ + و + ل)[اف: پ (قاموس) مص مت] (۱) په چرګه تغ تغ آواز کول (۲) و ـــــ تغل

**تغولے** :- (ټ + غ + وَ + لے)[اف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: تغولي (مؤ: تغولې)] (۱) د چرګ نه تغ تغ آواز ايستلے (۲) و ـــــ تغلے

**تغونګ** :- (ټ + غ + وَ + ن + ګ)[اف: پ (قاموس) حمص] او ـــــ تغونه

**تغونه** :- (ټ + غ + و + نه)[اف: پ (قاموس) حمص] تغونګ ، د چرګ نه د تغ آواز ويستنه.

**تغوُونکے** :- (ټ + غ + وُو + ن + کے)[اف: پ (قاموس) اس فاع ، مذ وا ، ج: تغوُونکي (مؤ: تغوُونکې)] په چرګ د تغ تغ آواز ويستونکے.

**تغهار** :- (ټ + غ + ها + ر)[پ ، اس ، صو ، مذ] د چرګ د تغ تغ پرله پسې آواز.

**تغے** :- (ټ + غے)[اف: پ (قاموس) اس ، مذ] او ـــــ تغکے

**تغېدل** :- (ټ + غې + د + ل)[پ ، مص لا] د چرګ تغ تغ آواز کول

**تغېدلے** :- (ټ + غې + د + لے)[پ ، مذ ، وا ، ج: تغېدلي ، مؤ: تغېدلې)] د چرګ تغ تغ آواز کړے.

**تغېدنګ** :- (ټ + غې + د + ن + ګ)[اف: پ (قاموس) حمص] او ـــــ تغېدنه

**تغېدنه** :- (ټ + غې + د + نه)[پ ، حمص] (۱) تغېدنګ ، تغېدهٔ ، د چرګ د تغ تغ آواز کونه (۲) تيز پرېښونه

**تغېدُونکے** :- (ټ + غې + دُو + ن + کے)[پ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: تغېدُونکي (مؤ: تغېدُونکې)] (۱) د تغ تغ آواز کوُونکے (۲) ډېرې کړتې کوُونکے (۳) تيز اچوُونکے

**تغېدهٔ** :- (ټ + غې + ده)[پ ، حمص] او ـــــ تغېدنه

**تفن** :- (ټ + فَ + ن)[انګ ، اس ، مذ] د ماسپښين د وخت خوراک

**تفن باسکټ** :- (تفن + با + س + ک + ټ)[انګ ، اس ، مؤ] د خوراک ټوکرۍ

**تفن کېريو** :- (تفن + کې + ر + ي + ر)[انګ ، اس ، مذ] د خوراک د وړلو ډبے

**تک** :- (ټ + ک)[پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: تکونه ، تکان] (۱) د ټوپک ډز ، (۲) د څهٔ څيـز د پرېوتلـو آواز (۳) د ګـډو بـزو او نـورو څـاروو يـو مـرض (۴) ګند (۵) وار (۶) برېدپُوله (۷) پلرين ميراث ، پلرينه مزکه (۸) د خربوزې د کرلو ځاے (۹) هغه لرګے چې زميندار پرې وخت معلوموي (۱۰) تنقيد ، اعتراض (۱۱) ګذار ، وار (۱۲) په حلق کښې راختونکے خطرناکه دانه

**اخستل** :- اص ، ګنډون ، شروع کول

**اومايه کېدل** :- (اف) اص ، د دؤو کارونو يو بل سره سمون خوړل ، د يو کار په وجه په بل کار کښې کامیابېدل.

**کول** :- اص ، د ګډې د چلېدو په وخت آواز کول.

**تـک ختـل** :- اص ، (۱) د څهٔ څيـز د پرېوتلـو آواز راتلـل (۲) د چـاد بـاتورۍ او ځوانمردۍ آواز راتلـل (۳) بخيـه يـا ګنډون شـلېدل (۴) د ګـوتې نـه د تـک آواز ويستل

**کښل** :- اص ، ګنډل ، بخيه کول (۲) د لاس يا د پښو رګونو نه د ستومانۍ لرې کولو د پاره په راکښلو آواز ويستل.

**کول** :- اص (۱) ګذار کـول (۲) ټـک ختـل ، آواز ختـل (۳) ډز کـول (۴) اعتـراض کول

(۵) ګنډون کول

**کېدل** :- اص (۱) ګذار کېدل (۲) ډز کېدل (۳) آواز کېدل (۴) اعتراض کېدل

**له ټکه اوښتل** :- (اف) اص ، ټـک لـه ټکـه کېـدل ، ټـک پـه ټـک مـړ کېـدل ، ناڅاپې مړکېدل

**له ټکه کېدل** :- (اف) اص و ـــــ ټک له ټکه اوښتل.

**ورکول** :- اص (۱) ګنډل ، بخيـه کـول (۲) د مـار لـړم يـا بـل څيـز چيچـل (۳) څهٔ نقصان يا ضرر وررسول

**وهل** :- اص (۱) موړے يا بل څيز په زور په مزکه يا دېوال کښې ننه باسـل (۲) په ستن سپنسي ښتېه لګول

پــه ګرېبان باندې چې ټک وهي غوټې

عاشق کښېباسي لاسونه په ګرېبان خپل (رحمان)

(۳) ځنډل ، صفا کول (۴) لاس پرقول (۵) لرې ويشتل (۶) نقصان رسول

**ويستل** :- اص (۱) آواز ويستل (۲) وهل ، ډبول ، بدل اخستل (۳) ټک کښل

**بې بـارُوتو ټکـان کـول** :- (اف) اص ، (۱) بغېـر دارو مـړ د کوډزُونـه کـول (۲) د څهٔ بندوبست نه بغېر کار کولو ته لاس اچول ، په څهٔ کار هسې راسوربدل.

**ځلې ته ټک ورکول** :- (ګن) اص ، چپ کېدل ، پټه خُلهٔ کښېناستل

**تـک** :- (ټ + ک)[پ ، اس معرفـه] ټانـک ، د ضـلع ډېـره اسماعيل خـان يـو تحصيل ، ټانک

**ټکا** :- (ټ + کا)[پ ، اس صو ، مؤ] ټکهار ، ډزهار ، په يو مخ د دزُونو آواز

**ټکاختل** :- اص ، ټکا راتلل ، ډزهارختل ، پرله پسې د ډزوُنو آواز راتلل

**راتلل** :- اص و ـــــ ټکاختل.

**کول** :- اص ، آواز کول ، د ډزونو آواز راتلل.

**کېدل** :- اص آواز په غوږ کېدل.

**ټُکـا** :- (ټُ + کـا)[اف: پ (قـاموس) ص] ټوکېدنـه ، د فصـل يـا د شـينکي سروهنه

**کول** :- (اف) اص ، راټوکېدل ، سر وهل.

**ټکـارکے** :- (ټ + کـا + ر + کے)[اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ وا ، ج: ټکـارکي] سخته هواره ، مزکه چې شينکے پکښې نهٔ وي ، بې وښو مزکه ، خشکه مېوه

**ټکال خور** :- (ټ + کا + ل + خو + ر)[پ (ب ، خ) اس ص ، مذ ، وا ، ج: ټکال خوارهٔ (مؤ: وا: ټکال خوره ، ج: ټکال خورے)] ډېرخور ، ډېرخوراک کوُونکے (۲) ډوډۍ غړپ ، تياره خورُونکے ، ناراسته

**ټکال مار** :- (ټ + کا + ل + ما + ر)[پ ، اس ص ، مذ ، وا ، ج: ټکال ماران (مؤ ، وا: ټکال ماره ، ج: ټکال مارے)] سخي ، ډوډۍ مار ، هغه څوک چې دسترخوان ئې اوږد وي.

**ټکال ماري** :- (ټ + کا + ل + ما + ري)[پ ، ص ، مؤ] مېلمه ، دوستي.

**ټکاله** :- (ټ + کا + له)[پ (خ + مر) اس ، مؤ] ډوډۍ ، مړۍ.

**خوړل** :- اص ، ډوډۍ خوړل ، مړۍ خوړل.

**ورکول** :- اص ، (۱) ډوډۍ ورکول ، مړۍ ورکول (۲) مېلمستيا کول.

**ټکالے** :- (ټ + کا + لے)[پ ، اس ، مؤ ، ج] ټوقې ټقالې ، وشتې ، ټقالې.

**ټکان** :- (ټ + کا + ن)[اف: پ (قاموس) اس ، مذ] د آس يا د بل څيز تيندک

**ټکانه** :- (ټ + کا + ڼ + ه)[پ (ګ ه : ټکانا ، اس ، مؤ](۱)په يو ځاے يا کور کښې لږ ايسارېدنه ټکاؤ ، آرام ، دمه (۲)د اوسېدو ځاے ، ډېره ، ټکانه

**ټکـانګو** :- (ټ + کـا + ن + ګ + ر)[اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ (مؤ ، وا: ټکانګره ، ج: ټکانګرې)د جوارو د ټکولو ځاے ـ

**ټکانه** :- (ټ + کا + نه)[اف: پ (قاموس) اس ، مؤ،وا ، ج: ټکانې ](۱)اندازه، حد(۲)ټکانه ، د اوسېدو ځاے ـ

**ټکاؤ** :- (ټ + کا + ؤ)[پ ، اس ، مذ ]ايسارتيا ، ايسارېدنه

کـه چـرې مـل شي د نـاقـابـل سره
ټکاؤ ئې نه وي رخصت ترې تل غواړي (خوشحال)

**کول** :- اص ، ايسارېدل ، د څهٔ وخت د پاره پاتې کېدل ـ

**کېدل** :- اص ، د څهٔ وخت د پاره پاتې کولے کېدل ـ

**ټکپرک** :- (ټ + ک + پ + ر + ک)[اف:پ (قاموس) اس ، مذ ] پين پړت ، د بټېرو يا مرزو آواز

**ټک په ټک** :- (ټک + پـه + ټ + ک)[پ ، اس ، مـذ ]اسمدستي ، پـه هغـه ساعت ، فوراً

**ټکټ** :- (ټ + کَ + ټ)[انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټکټونه ](۱)ټکس ، په لفافه ، کارډ يا پارسل لګېدُونکے د مقررې شرحې ورکوټے رنګدار کاغذ چې د هغه په وجه د ډاک خپل ځاے ته رسول د حکومت ذمه واري شي ـ (۲)د تماشې ، سينما يـا تهېټر د اجازت کاغـذ چې پـه مقـرر قيمـت خرڅـولے شـي (۳)د ګـاډي ، لاری ، ټـرام يـا جهـاز د کرايـه کاغـذ (۴)د اسمبلۍ د اُمېد واری هغـه اجازت نامـه چې اُمېدوار تـه ئې خپلـه ډلـه ورکوي (۵)هغه عدالتي کاغذ چې د مقدمې په کاغذونو لګولے شي او مقرر قيمت پرې ورکولے شي ـ

**اخستل** :- اص ، د اجازت پرچه اخستل ـ

**پرېکول** :- اص ، (۱)د ټکټ قيمت ادا کول (۲)ټکټ شلول(۳)ټکټ جاري کول

**ټکټ پرېکېدل** :- اص ، (۱)د ټکټ قېمت ادا کـېدل (۲)ټکټ شـلېدل (۳)ټکـټ جاري کېدل

**چېک کول** :- اص ،په سينما ، تهېټر، تماشه ، بس ، ګـاډي يا جهاز کښې د موجودو خلقو يا مسافرو څخه د باقاعده اجازت نامې پړتال کول ـ

**لګول** :- اص ،(۱)په خط يا پارسل د ټکټ کاغذونه چسپان کول (۲)کرايـه خرڅ کول (۳)ټکټ مقررول

**ټکټ چېکر** :- (ټ + ک + ټ + چې + کَ + ر)[انګ ، اس ، مذ ]هغـه عهده دار يا اهلکار چې د ټکټُونو پړتال کوي

**ټکټک** :- (ټ + ک + ټ + ک)[پ ، اس صو ، مذ ](۱)ټکهار ، د دوؤ څېزونو د يو بل سره د لګېدلو آواز(۲)د ګړۍ آواز

**ټکټکانے** :- (ټ + ک + ټ + کا + نے)[اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ](۱)د ماشومانو يوه لوبـه (۲)د يـو مارغـهٔ نـوم ، ټکټکانکه، وزيری: تېـز ، چابک

**ټکټکانکه** :- (ټ + ک + ټ + کا + ن + که)[اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ](۱)ټکټکانے ، د ماشومانو يوه لوبه (۲)يو چينجے

**ټکټکانـه** :- (ټ + ک + ټ + کـا + نـه)[اف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ]ټکـټکے ، ټکټکه ، هغه لړګے چې د هغه په حرکت ژَندرې ته غله ورننوزي ـ

**ټکټ کلکټر** :- (ټکټ + کَ + ل + ک + ټ + ر)[انګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: ټکټ کلکټران ]د ټکټ پړتال کوُونکے ، عهده دار

**ټکټکه** :- (ټ + ک + ټ + که)[اف: پ (قاموس) اس ، مؤ وا ، ج: ټکټکې ]
و ــــــ ټکټکانه ـ

**ټکټکـي** :- (ټ + ک + ټ + کـي)[اف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ](۱)و ـــ ټکټکانه (۲)يو قسم مرغۍ

**ټکټکے** :- (ټ + ک + ټ + کے)[پ اس ، مذ ، وا ، ج: ټکټکي ]ډګډګے ، موټر سائېکل

**ټک ټوک** :- (ټ + ک + ټُو + ک)[پ ، اس ، صو ، مذ](۱)په يو مخ د ډزو آواز ، ډزهار (۲)د دوؤ څيزونو د يو بل سره د لګېدلو آواز (۳)سامان برابرول ، تيارے

**ټکر** :- (ټ + کَ + ر)[ه ، اس ، مـذ ، وا ، ج: ټکرې ](۱)ټکره ، ديکـه ، تيلـه ، ډغره (۲)بُدرۍ ، تنبېدنه ، تيندک

دوباره ټکر په مخ باندې کوران خوري
زهٔ خـو نـهٔ وايـم تـاوتـه چـې کور (جناب کاکاخېل)

(۳)دوکه (۴)نقصان(۵)خرکاري (۶)سو، ببخل ، پُښته ، بند

**خوړل** :- اص ، (۱)ټکره خوړل ، ډغره خوړل (۲)تيندک خوړل(۳)تاواني کېدل ، نقصان کول

**ورکول** :- اص(۱)ديکه ورکول ، تېله ورکول (۲)نقصان ورکول ، زيان ورکول

**ټکره** :- (ټ + کَ + ره)[پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ټکرې او ـــ ټکر ج:

څـو عـلاج پـه سـاقي وُنـکړې جناب
خود به بيا ټکرې خوري شبکوره بيا بيا

**خوړل** :- اص ، و ـــــــ ټکر خوړل ـ

**موندل** :- اص ، نقصان رسېدل ، تاوان خوړل ـ

**ټکري** :-(ټ + کَ + ري)[پ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: ټکريـان ](۱)په ټکر کښې د خرکارو سره کار کوُونکے (۲)هغه څوک چې د ځان نه بغېر د بل څهٔ غم ورسره نهٔ وي ـ

**ټکرے** :- (ټ + ک + رے)[پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټکري ]څادر ، پټکے ـ

**ټُکره** :- (ټُ + ک + ره)[ه ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ټُکرې ](۱)ټوټه ، (۲)کپړا

**ټکس** :- (ټ + ک + س)[پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټکسُونه او ـــــ ټکټ ـ

**ټکسـال** :- (ټ + ک + سا + ل)[ه ، اس ، مـذ ، وا ، ج: ټکسـالُونه ] هغـه ځـاے چې روپۍ پېسې پکښې جوړېږي ـ

**ټکسالي** :- (ټ + ک + سا + لي)[ه ، اس ، مذ](۱)د ټکسال سره تعلق لرُونکے (۲)سُوچه ، کَره

**ټکسالي ژبه** :- (ټ + ک + سا + لي + ژ + به)[پ تر ، مؤ ]منلے شوے سُرچې اوکره ژبه

**ټکسـره** :- (ټَ + ک + سَ + ره)[اف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ج: ټکسرې ] هغـه چرچنه چې په سر ئې داغ وي ، شين سرے ـ

**ټکســرے** :- (ټ + ک + سَ + رے)[اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: ټکسري (مؤ : ټکسرے )]بې شرم ، بې حيا ، سپين سترګے ـ

**ټکـک** :- (ټ + کَ + ک)[اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ (مـؤ : وا: ټککـه ، ج: ټککې] سرتر سره ډک ، ډېر ډک ـ

**ټککه** :- (ټ + کَ + کـه)[اف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج: ټککې ]د يُوم هغه ارخ چې يُومبه پرې د زور کولو د پاره پښنه پرې ږدي ـ

**پر ټککه زور کول** :- (اف) اص ، په يُوم پښنه کښېښودل او زور پرې کول

**ټکلاس** :- (ټَ + ک + لا + س)[اف: پ ، اس ، مـذ](۱)چُست ، چالاک ، تېـز ، تکړه ، ټکلاستے(۲)نشانه باز (۳)زړهٔ ور

**ټکلاستے** :- (ټ + ک + لا + س + تے)[اف:پ (قاموس) اس ص ، مـذ ، وا ، ج:

ټكلاستي (مؤ:ټكلاستې)او ـــــــ ټكلاس.

**ټک له ټکه** :- (ټ+ک+لـه+ټ+کـه) [اف: پ (قـاموس) ص]ټک پـه ټـک ، سمدستي.

**اوښتل** :- (اف) اص ، ناڅاپي ، مړکېدل ، ټک له ټکه کېدل.

**کېدل** :- (اف) اص ، و ـــــ ټک له ټکه اوختل.

**ټکـن** :- (ټ+ک+ن) [پ ، ص ، مـذ (مـؤ ، وا: ټکنـه ، ج: ټکنــې) ]خالونـه خالُونه ، ټکی ټکی.

**ټکنده** :- (ټَ+ک+ن+ده) [پ،ص، مؤ]ټکنه، د ګرمۍ نه سره شوے، یشپدلے

**غرمه** :- اص ټکنه غرمه ، سره غرمه

**ټکنه** :- (ټ+ک+نه) [پ ، ص ، مؤ ]او ـــــ ټکنده

**غرمه** :- اص ، و ـــــ ټکنده غرمه.

**ټکنے** :- (ټ+ک+نے) [پ ، ص ، مذ ، وا ، ج: ټکنې (مؤ: ټکنې)] (۱)ټکنده ، ټکنه (۲)بیړندے ، ګړندے ، تېز، ټکنے (۳)ترهېدُونکے ځناور

**کول** :- اص (۱)ګړنـدے کـول ، بیړنـدے کـول (۲)وار پـار خطـا کـول (۳)ځناور ترهول

**کېـدل** :- اص(۱)ګړنـدے کېـدل ، بیړنـدے کېـدل (۲)وارپارخطـا کېـدل (۳)ځناور ترهېدل

**ټکنه** :- (ټ+کَ+نه) [اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټکنې ]مینه

**ټکنے** :- (ټ+کَ+نے) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ (مؤ: ټکنۍ)]او-ټکنے

**کېدل** :- (اف) اص ، و ـــــ ټکنے کېدل.

**ټکوپو** :- (ټ+کُو+پُو) [اف: پ (قاموس) ص]ټک د ټکه مړ ، سمدستي مړ

**کېدل** :- (اف) اص ،ټک پـه ټک مړ کېدل ، سمدستي مړ کېدل.

**ټکوچ** :- (ټ+کو+چ) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]ګنډنه ، ګنډ ، د بټښې پـه ځاے ټک ورکونه.

**کول** :- (اف) اص ،د بټښې پـه ځاے ټک ورکول.

**ټـک وال** :- (ټ+ک+وا+ل) [پ (بټ) اِس ، مـذ ، وا ، ج: ټـک والا ، مؤ ، وا ، ټک واله ، ج: ټک والې ]د ټانک اوسېدُونکے.

**ټکوچړ** :- (ټ+کو+چ+ړ) [پ (بټ) اِس ، مـذ (مؤ ، وا: ټکوچړه ج: ټکوچړې )]ټکـوچے ، ټکـوال ، د ټـک اوسـېدُونکے ، پـه ډېره اسماعیل خـان ضـلع کښې د ټانک نوم ځاے اوسېدُونکے.

**ټکوچے** :- (ټ+کو+چے) [پ (بټ) اِس ، مذ(مؤ: ټکوچۍ)] و- ټکوچړ.

**ټکور** :- (ټ+کو+ر) [ه ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټکوروُنه ]تب د وجود یـو انـدام تـه ګرمي رسونه.

**کـول** :- اص ، تبـل ، تـب ورکـول ، د وجـود څـهٔ انـدام تـه ګرمـي وررسـول، ټکور ورکول

**کېدل** :- اص ، تب ورکولے کېدل ، ټکورېدل.

**ورکول** :- اِص ، و ـــــــ ټکور کول.

**ټکورکے** :- (ټ+کُو+ر+کے) [پ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: تکـورکي ]اتُـوکرے ، پوزکے ، د مزري جوړ انډیرے

بې هاتیانو بې اوښانو بادشاهي کا

د زرۀ پوزي ټکورکے ئې قالین دے (رحمان)

**ټکـورول** :- (ټ+کـو+ر+و+ل) [پ ، مـص مـت ]ټکـور ورکـول ، ګرمـول ، ټکور کول ، خوږ شوي اندام ته تپ ورکول.

**ټکورونـګ** :- (ټ+کـو+ر+و+ن+ګ) [اف: پ (قـاموس) حمـص ]او ـــــ ټکورونه.

**ټکورونه** :- (ټ+کـو+ر+و+نـه) [پ ، حمـص ]ټکورونـګ ، ټکـور ورکونـه خوږ شوي اندام ته تپ ورکونه.

**ټکوروُونکے** :- (ټ+کـو+ر+وُو+ن+کـے) [پ ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټکوروُونکي (مؤ: تکوروُونکې)]ټکور ورکوُونکے ، خوږ شوي اندام تـه تپ ورکوُونکے.

**ټکورے** :- (ټ+کو+رَے) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ] کټورے ، مسین جام

**ټکورېدل** :- (ټ+کو+رې+د+ل) [پ ، مص لا ]ټکور ورکولے کېدل.

**ټکورېدنګ** :- (ټ+کو+رې+د+ن+ګ) [اف: پ (قاموس) حمص ] و ـــــ ټکورېدنه.

**ټکورېدنه** :- (ټ+کو+رې+د+نه) [پ ، حمص ]ټکورېدنګ ، ټکورېدۀ ، ټکورورکونے کېدنه.

**ټکورېـدُونکے** :- (ټ+کـو+رې+دُو+ن+کے) [پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: ټکورېـدُونکي (مـؤ : ټکورېـدُونکې )]تـپ ورکېـدُونکے ، ټکـور ورکېدُونکے.

**ټکورېدۀ** :- (ټ+کو+رې+ده) [پ ، حمص ]او ـــــ ټکورېدنه.

**ټکول** :- (ټ+ک+و+ل) [پ ، مص مت ](۱)وهل ډبول (۲)کُوټل

نصیحت د ناصحانو اثر نۀ کا

د سرې اوسپنې خوشې ټکول دي (رحمان)

(۳)ټک ورکول ، چیچل

دا د یار د وُروځو خیال دے نۀ پوهېږم

کـه لـړم مـې ټکـوي د زړۀ پـه لـشو (حمید)

(۴)خالُونه وهل ، رګونه وهل ، ټیکه لګول.

**جوار ټکول** :- اص ، جوارو د وریو نه دانې ایستل.

**خر ټکول** :- اص ، خروهل ډبول.

**سینه ټکول** :- اص ، سینه وهل ، ماتم کول

**ماشومان ټکول** :- اص ،(۱)ماشـومان وهـل (۲)ګـن ، ماشـومانو تـه خالُونـه یـا ټیکه لګول ، د ماشومانو رګونه وهل.

**ټکولے** :- (ټ+ک+وَ+لے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټکولي (مؤ : ټکولې )] (۱)وهلے ، ډبولے (۲)کُوټلے (۳)خالُونه وهلے

**ټکوڼ** :- (ټ+کو+ن+ڼ) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]د ماشومانو یوه لوبه

**کول** :- (اف) اص ، د ماشومانو د ټکوڼ لوبه کول.

**ټکونګ** :- (ټ+ک+وَ+ن+ګ) [اف: پ (قاموس) حمص ]او ـــــ ټکونه

**ټکونـه** :- (ټ+ک+و+نـه) [پ حمـص ](۱)ټکونـګ ، وهنـه ، ډبونـه (۲)کوُټنـه ، فصـل صفا کونـه ، د فصـل نـه دانـې ویسـتنه (۳)خالُونـه نګونه رګونه وهنه

**ټکونے** :- (ټ+کُـو+نـے) [اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ]د ژرنـدے تېـز چورلوُونکے.

**ټکوُونکے** :- (ټ+ک+وُو+ن+کے) [پ ، اس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټکـوُونکي (مؤ: ټکوُونکې)] (۱)ډبووُنکے ، وهُونکے (۲)فصل نه دانے ویستُونکے.

**ټکـوُونے** :- (ټ+ک+وُو+نـے) [پ ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټکـوُوني (مـؤ : ټکوُونې)](۱)د ډول لاړے یا لاسته (۲)ب ، خ ، د ټکولو کار ، د فصـل نه د دانو ویستلو چار

**ټکوُونې** :- (ټ+کَ+وُو+نې) [پ (ب، خ) اِس ، مؤ]د وهلو ډبولو دښمني.

**ټکوهل** :- (ټ + ک + و + ه + ل) اِپ ، مص مت اِو ـــــ ټک وهل

**ټکوهلے** :- (ټ + ک + و + ه + لے) اِپ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: ټکـوهلي (مؤ: ټکوهلې)اِ(۱)په مزکه یا دېوال کښې موړے تنه ایستلے (۲)په هتن سپنسي بتېنه لګولے (۳)ځنډلے ، صفا کړے (۴)لړے ویشتلے (۵)نقصان ورکړے -

**ټکوهنګ** :- (ټ + ک + و + هَ + ن + ګ) اِاف: پ (قاموس) حمص اِو - ټکوهنه

**ټکوهنه** :- (ټ + ک + و + ه + نه) اِپ ، حمص اِ(۱)ټکوهنګ ، په مزکه یا دېوال کښې تنه ایستنه (۲)په ستن سپنسي بتېنه لګونه (۳)ځنډنه ، صفا کونه

(۴)لړي ویشتنه (۵)نقصان ورکونه

**ټکوهُونکے** :- (ټ + ک + و + هـو + ن + کـے) اِپ ، اس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټکوهُونکي (مؤ : ټکوهُونکې)اِ(۱)په مزکه یا دېوال کښې تنه ایستونکے (۲)پـه ستن سپنسـي بتېنه لګـوُونکے (۳)ځنډه وُنکـے ، صـفا کـوُونکے (۴)لړے ویشتونکے(۵)نقصان ورکوُونکے

**ټکه** :- (ټ + که) اِاف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټکې اِغرئیزه بزه ، غرڅنې ، غرڅه -

**پوست** :- (اف) اِص ، د غرڅې یا غرڅنې څرمن -

**ټکه** :- (ټ + که) اِب ، ه: ټکا اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټکې اِیوه پخوانې سکه چې د دوؤ پېسو برابره وه ، دوه پېسین ټنګه

**ټکه په لاس کښې نۀ لرل** :- مح ، تش لاس کېدل ، بې پیسې کېدل ، خوار کنګال کېدل ، کُنجکه په لاس کښې نۀ لرل -

**ټکه** :- (ټَ + که) اِپ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ټکې اِ(۱)تندر ،آسماني آفت (۲)ناڅاپي مصیبت (۳)دښمني (۴)کرکه ، نفرت (۵)بغض ، کینه

**پرېوتل** :- اِص ،تندر پرېوتل ، آسماني آفت راتلل -

**پرلوېدل** :- (اف) اِص ، تندر پرې غُورزېدل ، ناڅاپي مصیبت پرې راتلل -

**پرېوتل** :- اِص ، تندر پرېوتل ، ټکه لوېدل -

**خوړل** :- اِص ، (۱)کرکه راتلل ،د څۀ څیز نه ناڅاپي لاس راکښل (۲)شک خوړل

**ښکاره کول** :- (اف) اِص ، (۱)تعجب کول ، حېرانېدل (۲)نفرت ځرګندول ، کرکه ښکاره کول -

**لوېدل** :- (اف) اِص ، تندر پرېوتل -

**مستي** :- اِص ، د ځوانې سر ، اوّله ځواني -

**زړۀ ته ټکه پرېوتل** :- اِص ، زړۀ ته ټکه راتلل ، زړۀ ته شک پرېوتل ، زړۀ کښې وهم راتلل -

**زړۀ ته ټکه راتلل** :- اِص ، و ـــــ زړۀ ته ټکه پرېوتل -

**ټکې رژول** :- (اف) اِص (۱)تندرونه را پرې باسل (۲)لوېه وینا کول ،ناشولتې غرول

**ټکهار** :- (ټ + ک + ها + ر) اِپ اِس صو ، مذ اِپرله پسې د ټک ټک آواز

**ټکـه ټُوکـه** :- (ټَ + کـه + ټُـو + کـه) اِپ ، اِس ، مـؤ اِ(۱)ټـاک ټُـوک ، لوبـے ، کودے (۲)تیاري

**کار پاتې کېدل** :- (سو) اِص لړ شان کار پاتې کېدل ټکې :- (ټ + کي) اِپ ، اِس ، مؤ اِ(۱)کشیده ، بخیه

سپین جمال دې ګوره ښائسته په تور خالُونو
تـل پـه کشـیده بـاندې ټکې د انځور شي (خوشحال)

(۲)نښانه ، ګل زېرې

غشي دې بانړۀ دې په لیندو د کړو وروځو
سوال کوې جناب چې کړه ټکې ځیګر زما

(۳)د پېزار تلے

**ټکې کول** :- اِص ، نښانه کول ، شیست پراخستل

**کېدل** :- (ب ، خ) اِص ، پېښې اوباسل ، یو ځاے نه روانېدل -

**لګول** :- (ب ، خ) اِص پېزار ته تلے لګول -

**لګېدل** :- اِص نښانه لګېدل ، نخښه لګېدل -

**ټکـې** :- (ټ + کـې) اِاف: پ (قـاموس) اِس ، مـؤ اِ(۱)د ډوډۍ یـا د نمـر ککـوړے ، ټکـې (۲)لنـډۍ، ټپـه (۳)پـه بـرق بـرق خنـدا ، پـه ډکـه خُلـۀ خندا (۴)مچوغنې کښې د کانړي کښېښودو حلقه (۵)هغه سرۀ داغونه چې په بدن ظاهرشي او بیا زر پټ شي ، لړے -

**ټکې خندل** :- (اف) اِص په برق برق خندل ، په ډکه خُلۀ خندل

**پرخپله ټکې اوړ اړول** :- (اف) مح ، په خپلو خولو کښې ډُوب اوسېدل ، د خپلې ګټې فکر کول

**زړۀ پرې ټکې ټکې کېدل** :- (اف) مح په چا ترس کول ، چا سره همدردي کول ، زړۀ پرې سول -

**ټکې** :- (ټ + کې) اِپ (ګن) اِس ، مؤ اِ(۱)د ډوډۍ یا د نمر ککوړے (۲)ګول یا غُنډ څیز (۳)یو قسم خواړۀ

**ټکے** :- (ټ + کے) اِپ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټکي اِ(۱)حرف ، تورے (۲)لفظ (۳)مصرع

مـعـرّي وي د مـراد لـه هـره ټـکـي
په کتاب کښې چې راوُزي باب د طمع (جناب کاکاخېل)

**ټکے** :- (ټ+کے) اِپ ، اِص ، مذ ، وا ، ج: ټکي اِ(۱)داغ ، خال

که باندې خیرې یا ټکے پرېوزي
پـاکـیزګـي ده ورتــه تـیاره (خوشحال)
پـه بـېسو د رنګارنګه ټکي ګوره!
په دا شان به ښائیسته نۀ وي لوڅک (خوشحال)

**ټکے اوبۀ** :- اِص ، څاڅکے اوبۀ ، قطره اوبۀ -

**ټکے** :- اِص ، څاڅکے څاڅکے ، قطره قطره

ځنکدن دے ساقي راشه څڅوه نن
پــه تـالو کښې راتــه ټکے ټکے بنګ (جناب کاکاخېل)

**په دې ټکي** :- اِص ، دغه وخت اوس ، په دې ساعت

**ټکے** :- (ټَ + کے) اِپ (ظرف) اِس ، مذ ، هغـه اِس ، مذ اِهغه اس یا غوایه چې په تندي ئې سپین خال وي، ټکند ، چست او بیدار

**ټکے** :- (ټ + کے) اِاف پ (قاموس) اِس ،مذ اِچرمکے ، ګردۍ ، بورک -

**ټکیالے** :- (ت + ک + یا + لے) اِاف: پ (قـاموس) اِس ،مذ ، وا ، ج: ټکیـالي (مؤ: ټکیالې )اِټکي ټکي ، داغ داغ

**ټکي ټکي** :- (ټ + کي + ټ + کي) اِپ ، ص اِټکیالے ، برګ ترګ ، داغ داغ

چې ئې پاس په اوږو واچوي پړانګ شي
پــــه ټـکي ټـکي شـالـونـه د کشمیر (خوشحال)

**ټکېدل** :- (ټ + کې + د + ل) اِپ ، مص لا اِ(۱)مبده کېدل ، پستېدل

دوهم جنګ میرحسیني په دوآبه کښې
چــې ئـې وټـکـېدۀ سـر لـکـه د مار (خوشحال)

(۲)وهلے کېدل (۳)ورو ورو روانېدل (۴)کرکه راتلل ، زړۀ مړېدل (۵)څۀ

څیز ته لېواله کېدل۔

**زړۀ ټکېدل** :- اِص ، زړۀ اوچتېدل ، زړۀ مرېدل

**ټکېدلے** :- (ټ + کې + د + لے) اِپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټکېدلي(مؤ: ټکېدلې)[ (۱)مېده شوے ، پوست شوے (۲)وهلے شوے (۳)ورو ورو روان شوے۔

**ټکېدنګ** :- (ټ + کې + د + ن + ګ) [اف : پ (قاموس) حمص ]و ـــ ټکېدنه

**ټکېدنه** :- (ټ + کې + د + نه) اِپ ، حمص ] (۱)ټکېدنګ ، ټکېدۀ ، پستېده ، مېده کېدۀ (۲)وهلے کېدۀ (۳)ورو ورو روانېدۀ (۴)زړۀ مرېدنه

**ټکېدُونکے** :- (ټ + کې + دُو + ن + کے) اِپ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټکېدُونکي (مؤ: ټکېدُونکې )[ (۱)مېده کېدُونکے ، پستېدُونکے (۲)وهلے کېدُونکے (۳)ورو ورو روانېدُونکے۔

**ټکېدۀ** :- (ټ + کې + دۀ) اِپ ، حمص ]و ـــ ټکېدنه۔

**ټګ** :- (ټ + ګ)اِپ، ہ: ٹھگ،اِس ، وا ، ج: ټګان (مؤ ، وا : ټګه ، ج : ټګانې )چالاک ، دوکه باز ، مکار ، دروغژن ، ټګمار چلولي

لکه ټګ او دغا بازوي
پــه مـرغانو کښې ډګر (رحمن)

څوک چې نرم وئيل کاعمل ئې ګوره
ټــګان هــم پــه خُلۀ وئيل کا نرم نرم (خوشحال)

**يار** :- اِص ، دوکه باز ملګرے ، چلولي دوست

حال د دواړه وار په وار راته معلوم شو
ټــګه يــاره په زړۀ تريخه په خُلۀ خوږه (خوشحال)

**ټګل** :- (ټ + ګ + ل) اِپ ، مص مت ]ټګېيل ، دوکه ورکول ، چا سره ټګي کول

کــه دې سل چارې پوره واړه پوره شي
په حرص به دوه سونور ورته ټګل کړي (خوشحال)

**ټګمـار** :- (ټ + ګ + مـا + ر) اِپ ، اِس ص ، مـذ ، وا ، ج: ټګمـاران (مـؤ، وا: ټګماره ، ج: ټګمارې )و ـــ ټګ۔

**ټګماري** :- (ټ+ګ+ما+ري) اِپ ، اِس ، مؤ ]ټګي ، مکر ، دوکه ، فريب، چلول

**کول** :- اِص ، ټګي کول ، دوکه کول ، چلول کول۔

**ټګنه** :- (ټ + ګ + نه) اِپ ، حمص ]ټګي کونه ، ټګېينه ، دوکه کونه

**ټګوُنکے** :- (ټ + ګو + ن + کے) اِپ ، اِس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټګوُونکي (مـؤ : ټګوُنکې )ټګي کوُونکے ، ټګمار ، ټګېمُونکے۔

**ټګي** :- (ټ + ګي) اِپ ، اِس ، مؤ ]و ـــــــ ټګماري

همه واړه ئې ټګان دي ټګي کاندي
فــروشــنده وخــرايــدار د دې دنــيا (رحمان)

**کول** :- (اِص، ټګماري کول دوکه ورکول ، چلول کول

په تسبيح خوزَوه شوندې
نــور ټــګي کوې که غلا (خوشحال)

**کېدل** :- دوکه کېدل، مکر فريب کېدل ، چلول کېدل

**لرل** :- اِص ، چې په زړۀ کښې ټګ وي ، دغلـه ، ځان په ټګي اچول ، په ظاهر يو په باطن بل

که خبر نه ئې خبر شه چې حال څۀ دے
پــه ظاهــره ډېــر ټــګي لــري له ټکه (خوشحال)

**ځان پر ټګي اچول** :- (اف)محو ـــ ټګي لرل۔

**ټګېيل** :- (ټ + کې + ي + ل) اِپ (ب ، خ) مص مت ]و ـــــ ټګل۔

**ټګېينه** :- (ټ + ګې + ي + نه) اِپ (ب، خ) حمص ]و ـــــ ټګنه۔

**ټګېيُونکے** :- (ټ + ګې+ يُـو + ن + کـے) اِپ (ب، خ) اِس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټګېيُونکي (مؤ: ټګېيُونکې) او ــــــــ ټګوُنکے۔

**ټل** :- (ټ + ل) [اف : پ (قاموس) اِس ، مذ] (۱)ملګرے ، دوست (۲)قبيله (۳)ګڼ (۴)د يو کلي يا علاقې حصه (۵)چم ، محلت ما جناب د لېونو په ټل داخل کړهنن کوڅه په کوڅه دغه نغاره کړه (۶)باړې (۷)د ګلونو غنچه

چې وفا مې د مجاز په ښکليو غوښته
دا غنچه په دغه ټل کښې نۀ وه نشته

(۸)نژدې والے ، نزديکت (۹)حد ، پُوله

**ټل ټړل** :- (اف)اِص ، په سيند کښې د اچولو د پاره لرګي په يو ځاے ټړل ، هېړ ټړل

**کول** :- (اف) اِص ، يو ځاے کول ، ګډزول ، راغونډول

**کېدل** :- (اف) ، اِص ،يو ځاے کېدل ګرډېدل ، راغونډېدل۔

**ټل** :- (ټَ + ل) اِپ ، اِس معرفه ]د کوهاټ په ضلع کښې د هنګو په تحصيل کښې يو مشهور کلے۔

**ټلتوب** :- (ټ + ل + تو + ب) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]ټلوالے ، ملګرتيا۔

**کول** :- (اف) اِص ، ملګرتيا کول ، ټلوالے کول

**ټلــوال** :- (ټ + ل + وا + ل) اِپ اِس ص ، مــذ ، وا ، ج: (مــؤ وا : ټلوالــه ، ج: ټلوالے )د ټل اوسېدُونکے ، د ټل د علاقې۔

**ټلوالے** :- (ټ + ل + وا + لے) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]و ـــ ټلتوب۔

**کول** :- (اف) اِص و ـــــ ټلتوب کول۔

**ټلې** :- (ټ + لې) اِپ (ګن) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټليانې ]ګنتيې

**ټنګول** :- اِص ، ټلې وهل ، ټلې ړغول ، ګنتيې ړغول ، ټلې ګړنګول۔

**ړغول** :- اِص ، و ـــــ ټلې ټنګول۔

**ګړنګول** :- اِص۔ و ـــــ ټلې ټنګول۔

**وهل** :- اِص ، و ـــــ ټلې ټنګول۔

**ټم** :- (ټ + م) اِپ ، اِس ،مذ ] (۱)د سپي غُونګار ، د سپي ټمايا آواز ، د سپي غپا

سپے چې چاسره آشنا شي څۀ پرې وُخوري
وهــغـۀ تــه ئــې ټــم نۀ وي څو ژوندے وي (خوشحال)

(۲)د داړونکو ځناورو غږ (۳)کينه ګوره (۴)د دوۀ شونډو په يو ځاے کولو يو مخصوص آواز

**ټماټر** :- (ټَ + ما + ټ + ر) اِپ ، انګ : ټومَېټو ، اِس ، مذ] (۱)سرۀ باټينګ ڼ ، يوه ترشه سبزي چې په پخېدو ئې رنګ سُور شي -(۲)سُور رنګے سړے ، سُور مخے۔

**ټماغه** :- (ټ + ما + غه) [اف: پ (قـاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټمـاغې ]د افسرۍ خولې

**ټمباري** :- (ټ + م + بـا + رِي) [اف: پ (قـاموس) اِس ، مؤ ]په چغو چغـو ژړا ، ټمبارے ، بغارے۔

**ټمبارے** :- (ټ + م + با + رے) اِپ (ب، خ) اِس ، مؤ ، ج ]و- ټمباري

**وهل** :- (ب، خ) اِص ، و ـــــ ټمباري وهل۔

**ټمباري وهل** :- (اف) اِص په چغو چغو ژړل ، ټمباري وهل ، بغاري وهل

**ټمبر** :- (ټ + م + بَ + ر) [انګ ، اِس ،مذ ]عمـارتي لرګے ، شاهتير ، ښښتر ، څټه ، تنه

**ټمبر مرچنټ** :- (ټمبر + مَ + ر + چ + ن + ټ) [انګ ، اِس ص ] د عمارتي لرګي

یا څټیو سوداګر .

**ټمبکه** :- (ټ + م + ب + که) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]ډیوټ ، د ډیوړ تاخ

**ټمبـل** :- (ټ + م + ب + ل) [اف: پ (قـاموس) ص ، مـذ (مـؤ ، وا: ټمبلـه ، ج: ټمبلې ](۱)غټ ، څورب ، پړسېدلے (۲)ناړامه ، ناراسته ، لټ

**ټُمبل** :- (ټُ + م + بَ + ل) [اپ ، مص ]ټومبل ، لکول ، پکښې ورننه ایستل .

**ټمبل ملخ** :- (ټَ + م + ب + ل + م + ل + خ) [اف: پ (قـاموس) اس ، ص ، مذ ] خرکی ، هغه خړ رنګے ملخ چې مړزانو او تنزروته د خوراک په ډول ورکولے شي .

**ټمبوس** :- (ټ + م + بو + س) [اف: پ (قـاموس) اس ، مذ (مؤ ، وا ، ټمبوسه ، ج: ټمبوسې)]او ـــــــــ ټمبل .

**ټمبه** :- (ټ + م + بـه) [اپ ، ص ](۱)پړسېدلے ، تُومبیا ، هغه څناور چې خېټه ئې د بدهضمۍ له کبله ډېره شوې وي (۲)تمبه ، د دروازې پټ

**ټمبه کول** :- اص ، پړسول ، د ډول .

**کېدل** :- اص ، د بدهضمۍ له کبله ډډېدل .

**خلک سره ټمبه کېدل** :- (اف) مح پـه یـوه خبـره د خلقـو اتفـاق راتلـل او پـر غونډېدل .

**ټمبېل** :- (ټَ + م + بې + ل) [اف: پ ، اس ، مذ ]تنبېل ، ډېر پړسېدلے ، ډډېدو .

**ټمپرېچـــر** :- (ټ + م + پ + رې + چ + ر) [انـګ ، اس ، مـذ ](۱)ګرمـي ، حرارت

(۲)تبه ، تودوالے

**اخستل** :- اص ، تبه کتل ، د بیمار د تبې حرارت معلومول .

**ختل** :- اص ،(۱)ګرمي زیاتېدل ، حرارت زیاتېدل (۲)تبه ختل ، تبه زیاتېدل

**کتل** :- اص ، تبه کتل ، د تهرمامیټر په ذریعه د بیمار حرارت معلومول.

**کوزېدل** :- اص ، (۱)حرارت کمېدل ، ګرمي کېدل (۲)تبه کمېدل .

**نوټ کول** :- اص ، د چارټ‌ې حرارت لیکل .

**ټَمتَم** :- (ټ + م + ټ + م) [اُر ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټَمتمُونه ]ټانګه ، بګۍ ، د دوؤ پایو ګاډے چې چتکې پرې باندې وي او اَس پکښې جوت وي .

**ټمتې** :- (ټ + م + تې ) [اف: پ (قـاموس) اس ، مذ (مؤ : ټمتۍ )]ټیټ‌شان ، ټیټکے ، ټمتېرے .

**ټمتېرے** :- (ټ + م + تې + رے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ وا ، ج: ټمتېرې ، ټمتېریان (مؤ ، وا ټمتېرې ، ج: ټمتېریانې )]او ـــــ ټَمتې .

**ټمتېل** :- (ټ + م + تې + ل) [اف: پ (قـاموس) اس ، مذ ](۱)یو قسم مرغۍ ، څاړے (۲)د خلقو ګنه ګونه

**ټمول** :- (ټ + م + و + ل) [اپ ، مص مت ](۱)غپول ، سپي په غپا سر کول (۲)څوک پـه عبث خبـرو اختـه کـول ، پـه چـالوګـے او عبث خبـرې کـول ، بکواس پرې کول .

**ټَمولے** :- (ټ + م + وَ + لے) [اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټَمولي (مؤ: ټمولې)] (۱)غپولے ،(۲)په چا بکواس کړے ، څوک فضول غږولے .

**ټَمونه** :- (ټ + م + و + نه) [اپ ، حمص ](۱)غپونه (۲)فضول غږونه

**ټمُونکـے** :- (ټ + مَ + وُو + ن + کـے) [اپ ، اس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټمـوُونکي (مؤ: ټمُونکې)](۱)غپوُونکے (۲)فضول غږوُونکے .

**ټمېدل** :- (ټَ + مې + د + ل) [اپ ، مص ](۱)غپېدل ، غپ غپ کول

چې چا د شعر کړے بې میزان بې عروض
دا هېڅ شاعري نۀ ده څو سپي دي ټمېدلي (خوشحال)

(۲)فضول غږېدل ، عبث خبرې کول

**ټمېدلے** :- (ټ + مې + د + لے) [اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټمېدلي (مؤ : ټمېدلې )](۱)غپېدلے (۲)فضول غږېدلے .

**ټمېدنه** :- (ټ + مې + د + نه) [اپ ، حمص ](۱)غپېدنه (۲)فضول غږېدنه .

**ټمېـدُونکے** :- (ټَ + مـې + دُو + ن + کـے) [اپ ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټمېـدُونکي (مـؤ: ټمېـدُونکې)](۱)غپېـدُونکے (۲)فضـول غږېـدُونکے عبث خبـرې کوُونکے

**ټـن** :- (ټ + ن) [انګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټَنُونه ]د وزن یوه پیمانـه ، اتـۀ ویشت منه .

**ټَنبکـه** :- (ټ + ن + بَ + کـه) [اف: پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ، ج: ټنبکې ]د مچو ډمبکے ، د بمبرو ډمکے .

**ټنبـل** :- (ټ + ن + بـې + ل) [اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ (مـؤ ، وا : ټنبیلـه ج: ټنبیلې )]او ـــــــــ ټَمبېل .

**ټَنتاري** :- (ټ + ن + تا + ري) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]او ـــــ ټَمباري .

**ټَنته** :- (ټ + ن + ته) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ](۱)ټاټـه (۲)بلوه ، هلـه ګُلـه ، ګډوډي ، پتنه ، شور

**ټنجـه پنجـه** :- (ټ + ن + جـه + پ + نـه + جـه) [اپ (ظفـر) اس ، مـؤ ، وا ، ج: ټنجې پنجې ]ناز نخره ، ادا ، غمزه ، کبنچ کمیز ، اوني پُوني .

**ټنجې پنجې کول** :- (ظفر) اص ، ناز نخرې کول ، کبنج مکبز کول ، اُوني پُوني کول

چُوړې که واغواندي ورېښمنې رنجې
بـل څـۀ بـه نـۀ شـي پـه ټنجې پنجې (خوشحال)

**ټنچن** :- (ټ + ن + چَ + ن) [اپ (عا) کلمه ]ټنشن ، پام ، تیار شئ ، بیدار شئ

**ټنډ** :- (ټ + ن + ډ) [اپ ، ص ، مذ (مؤ ، وا: ټنډه ، ج: ټنډې) ](۱)پړسېدلے ، ډډ (۲)څورب (۳)مرور (۴)هغه غوڅکے چې خصي شوے نۀ وي

هر یو ټنډ چې زورور شي
ټنډ غېمه هغه تر څنګ کا (خوشحال)

(۵)سخت زړے ، بې زړه سوه

د عاشـق د لاغـرۍ سـبب هم دا وي
چې فرق د معشوقو شوه په زړۀ ټنډه (رحمان)

(۶)بدمعاش

**ټنـډ** :- (ټ + ن + ډ) [اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: ټنـډان ]یـو قسـم قندهاري انګور .

**ټنډتوب** :- (ټنډ + تو + ب) [اپ ، اس ، مذ ](۱)ټنډوالے ، پړسوب ، ډډوالے ، غټوالے (۲)بدمعاشي ، نفس پرستي ، ټنډتیا

**ټنډتُوت** :- (ټنډ + تُو + ت) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]یو قسم تُوت چې په قندهار کښې ملاوېږي

**ټنـډتیا** :- (ټ + ن + ډ + ت + یـا) [اپ (ب ، خ) اس ، مـؤ ]بـد معاشـي ، نفس پرستي ، وران کاري

**ټَنډر** :- (ټ + ن + ډ + ر) [اپ (بنو) اس ، مذ ]غېر آباد لوګ ، وران ویجاړ

ګورې چې چمن ته ګُلان نشته تش ډنډر ښکاري
ښـۀ آبـاد ځـایـونـه غرمې او ګوره ټنډر ښکاري (مطیع الله قریشي)

**کول** :- (بنو) اص ، لوګ کول ، ورانول ، غېر آباد کول

**کېدل** :- (بنو) اص ، لوګ کېدل ، ورانېدل ، غېر آباد کېدل .

**ټنـډر** :- (ټ + ن + ډَ + ر) [انګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: ټنډرُونـه ] د ټېکې د نـرخ

درخواست۔

**خلاصول** :- اص ، د ټیکې د اخستو د پاره د ټیکېدارانو ورکړي شوي نرخونه په یو مقرر وخت کتل۔

**کول** :- اص ، د ټیکې د نرخ درخواست ورکول ، تنړ ورکول۔

**منظورول** :- اص، د ټیکې نرخ منظورول ، چاته په مقرر نرخ ټیکه ورکول۔

**منظوربدل** :- اص ، د چا د ټیکې د نرخ منظوري کېدل ، چاته په مقرر نرخ ټیکه ورکولے کېدل۔

**ورکول** :- اص ، و ـــــ تنړ کول۔

**ټنړغرکے** :- (ټ + ن + ړ + غ + ر + کے) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ټنړغرکي (مؤ : ټنړغرکې)] (۱)خېټه ور ، ډډخېټے ، پړسېدلے (۲)څورب هلک (۳)د نوي عمر غویاے چې خصي شوے نهٔ وي۔

**ټنړکے** :- (ټَ + ن + ړَ + کے) [اف : پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ټنړکي (مؤ : ټَنړکے)]د ورکوټي قد سړے چې خېټه ئې پړسېدلے وي۔

**ټَنړکۍ** :- (ټ + ن + ړ + کۍ) [پ (ب ، خ) اس تصغیر ، مؤ ]وړه لښته ، چُوکه

**ټَنړو** :- (ټ + ن + ړو) [اف: پ (قاموس) ص ]پړسېدلے، غټ خېټے ، خېټه ور

**ټنړوالے** :- (ټ + ن + ړ + وا + لے) [پ ، اس ، مذ ]و ـــــ ټنړتوب۔

**ټنړور** :- (ټ + ن + ړو + ر) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ] (۱)په یو خاص ډول د زنغوځو په تودو شګو کښې وریتول(۲)څهٔ څیز ترسره انبار کول۔

**کول** :- (اف) اص ، (۱)په یو خاص ډول زنغوځي په تودو شګو کښې وریتول (۲)څهٔ څیز تر سره انبار کول۔

**کېدل** :- (اف) اص (۱)د زنغوځو په یوخاص ډول په شګو کښې ورتېدل (۲)څهٔ څیز تر سره انبار کېدل۔

**ټنړور** :- (ټ + ن + ړو + ر) [پ (ب، خ)اس ، مذ ]شورزون ، غوغا ، دا ټکے د ویر سره ګډ استعمالېږي ، لکه ویر ټنړوُر۔

**ټَنړورول** :- (ټ + ن + ړو + ر + و + ل) [اف : پ (قاموس) مص مت ] (۱)ټنړور ورکول ، په شګو کښې زنغوځي وریتول (۲)انبار کول

**ټَنړورونه** :- (ټ + ن + ړو + ر + و + نه) [اف: پ (قاموس) حمص ] (۱)په شګو کښې د زنغوځو وریتونه (۲)انبارونه

**ټَنړوروُونکے** :- (ټ + ن + ړو + ر + وُو + ن + کے) [اف: پ (قاموس) اس فاع ، مذ ، وا ، ج: ټنړوروُونکي (مؤ : ټنړوروُونکې)] (۱)په شګو کښې زنرغوځي وریتوُونکے (۲)انباروُونکے

**ټَنړوربدل** :- (ټ + ن + ړو + رې + د + ل) [اف: پ (قاموس) مص لا] (۱)ټنړورکېدل ، په شګو کښې زنغوځي ورتېدل (۲)انبارېدل

**ټَنړوربدنه** :- (ټ + ن + ړو + رې + د + نه) [اف: پ (قاموس) حمص ] (۱)په شګو کښې د زنغوځو ورتېدنه ، ټنړورېدهٔ(۲)انبارېدنه

**ټنړوربدُونکے** :- (ټ + ن + ړو + رې + دو + ن + کے) [اف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ټنړوربدونکي (مؤ: ټنړوربدُونکې)] (۱)په تودو شګو کښې زنغوځي ورتېدُونکے (۲)انباربدُونکے۔

**ټنړوُربدهٔ** :- (ټ + ن + ړو + رې + دهٔ) [اف: پ (قاموس) حمص ] و ـ ټنړوربدنه

**ټَنړول** :- (ټ + ن + ړ + و + ل) [پ ، مص مت ] (۱)پړسول ، ډډول ، ډکول (۲)په ناجائزه طریقه بلاربول

**ټَنړونه** :- (ټ + ن + ړ + و + نه) [پ ، حمص ] (۱)پړسونه ، ډډونه ، ډکونه (۲)په ناجائزه طریقه بلاربَونه

**ټَنړوُونکے** :- (ټ + ن + ړ + وُو + ن + کے) [پ ، اس فاع ، مذ ، وا ، ج: ټنړوُونکي (مؤ : ټنړوُونکې)] (۱)پړسوُونکے ، ډډوُونکے ، ډکوُونکے (۲)په ناجائزه طریقه بلاربَوُونکے

**ټَنړوبک** :- (ټ + ن + ړ + وې + ک) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ]ګړبوزے ، ګُورت ، د کټې ګوتې ، او د شهادت د ګوتې په مېنځ کښې فاصله۔

**ټنړه** :- (ټ + ن + ړه) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ټنړې ] (۱)بلاربه خره (۲)زنا کاره بلاربه ښځه

وماته ښځهٔ ده هوښیاره کونړه
تر پېغلې جنې کم عقله ټنړه (خوشحال)

(۳)وچولے ، تندے

د زړهٔ خبره زړهٔ کښې پاتې شوله
ګونځې په ټنړه د صنم پر بوتې (مطیع الله قریشي)

(۴)د جنګ جګړې په نیت غونړه (۵)بې زړهٔ سبوه ، ظالمه

**کول** :- اص ، د فساد او جنګ په نیت راګرځېدل

**کېدل** :- اص ، د فساد او جنګ په نیت راغونړېدل۔

**ټنړه** :- (ټ + ن + ړَه) [پ ، ه : ټنړ : اس ، مؤ ، وا ، ج: ټنړې ] (۱)یو قسم ګول ترکاري (۲)غټ پړسېدلے ټیټ سړے

**ټنړه خره** :- (ټنړه + خ + ره) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]یوه لوبه

**کول** :- (اف) اص ، د ټنړې خرې لوبه

**ټنړه غالبوزه** :- (ټنړه + غا + ل + بُو + زهٔ) [اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: ټنړې غالبوزې ]سره مچۍ ، سره بمبره ، ډنبره

**ټنړۍ** :- (ټ + ن + ړۍ) [پ (ب، خ) اس ، مؤ ]لښته ، چُوکه

**د ټنړۍ وېش** :- (ب ، خ) اص د چُوکې وېش۔

**ټنړېدل** :- (ټ + ن + ړې + د + ل) [پ ، مص لا] (۱)پړسېدل ، ډډېدل (۲)بلاربېدل

**ټنړېدنه** :- (ټ + ن + ړې + د + نه) [پ ، حمص ] (۱)ټنړېدهٔ ، پړسېدنه ، ډډېدنه (۲)بلاربېدنه۔

**ټَنړېدُونکے** :- (ټ + ن + ړې + دُو + ن + کے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټنړېدُونکي (مؤ: ټنړېدُونکې)]پړسېدُونکے ، ډډېدُونکے۔

**ټَنړېدهٔ** :- (ټ + ن + ړې + دهٔ) [پ ، حمص ]و ـــــ ټنړېدنه۔

**ټنړېل** :- (ټ + ن + ړې + ل) [اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ج : ټنړېلُونه ] (۱)سُرنګ ، غار (۲)د خلاصیانو یا قُلیانو افسر۔

**ټنګ** :- (ټ + ن + ګ) [پ ، اس صو ، مذ ، وا ، ج: ټنګوُنه ] (۱)د ترنګ آواز ، د څهٔ څیز د ټنګولو آواز (۲)د ساز آواز

**ختل** :- (ب ، خ) اص (۱)آواز ختل ، غږ ختل (۲)د بهادرۍ او تکړه توب مشهوري کېدل

**کول** :- اص ، د ټنګ آواز ویستل

**کېدل** :- اص ، د ټنګ آواز کېدل۔

**ټنګا** :- (ټ + ن + ګا) [پ ، اس صو ، مؤ ]ټنګهار ، پرله پسې آواز ، د دوؤ څیزونو د جنګېدلو په یو مخ آواز۔

**ټنګ ټکور** :- (ټنګ + ټ + کو + ر) [پ ،اس مو، مذ]سرود ،مجلس ،ساز آواز

د مېکدې په ټنګ ټکور واعظه
ستا د یار جبه ممبر خرڅوم (ظفر کاکا خېل)

**ټنګ ټُونګ** :- (ټنګ + ټو + ن + ګ) [پ ، اس صو ، مذ ] (۱)د ساز او سرود آواز (۲)د مَسینو لوښو د یو بل سره د جنګېدلو آواز

**ټنګول** :- (ټ + ن + ک + و + ل) اپ ، مص مت ]۱) د ساز تارونو نه آواز ویستل (۲)مسین لوښي یو بل سره جنګول (۳)ګړیال غږول

**ټنګولے** :- (ټ + ن + ګ + و + لے) اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټنګولي (مؤ : ټنګولې) ]۱) د ساز د تارونو آواز ویستلے (۲)د مسین لوښو د جنګولو نه آواز ویستلے (۳)ګړیال غږولے

**ټَنګونه** :- (ټ + ن + ګ + و + نه) اپ ، حمص ]۱) د ساز تارُونو نه آواز ویستنه (۲)مَسین لوښي جنګونه (۳)ګړیال غږونه

**ټنګوُونکے** :- (ټ + ن + ګ + وُو + ن + کے) اپ ، اس ، فاع ، مذ ، وا ، ج: ټنګوُونکي (مؤ : ټنګوونکې) ]۱) د ساز تارونو نه آوازویستونکے (۲)مَسین لوښي جنګوُونکے (۳)ګړیال غږوُنکے

**ټنګه** :- (ټ + ن + ګه) اپ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ټینګې ]۱) یوه سکه ، د پخواني زماني ځلور انیز (۲)ګن ، د دوؤ پیسو غټه سکه (۳)پنګه ،سرمایه

بل فکر ئې هېر دے خو په غم د زرو پول ي
نر ښځې به ئې واړه خو ټنګه ټنګه لرینه (خوشحال)

**پاؤ ټنګه لرل** :- اِص ، پنګه لرل ، سرمایه لرل

**ټنګهار** :- (ټ + ن + ګ + ها + ر) اپ ، اِس صو ، مذ ]و - ټَنګا

**ټنګېدل** :- (ټ + ن + ګې + د + ل) اپ ، مص لا]۱) د ساز تارُونه غږېدل (۲)مسین لوښي جنګېدل (۳)ګړیال غږېدل

**ټنګېدلے** :- (ټ + ن + ګې + د + لے) اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټنګېدلي (مؤ: ټنګېدلې) ]۱)ساز غږولے (۲)مَسین لوښے جنګولے (۳)ګړیال غږولے

**ټنګېدنه** :- (ټ + ن + ګې + د + نه) اپ ، حمص ]۱)ساز غږېدنه (۲)مَسین لوښي جنګېدنه (۳)ګړیال غږېدنه

**ټنګېدُونکے** :- (ټَ + ن + ګې + دُو + ن + کے) اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: نګېدُونکي (مؤ : ټنګېدُونکې) ]۱)ساز غږېدُونکے (۲)مسین لوښي جنګېدُونکي (۳)ګړیال غږېدُونکے

**ټنن** :- (ټ + ن + ن) ]اف: پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ وا : ټننه ، ج: ټننې)] (۱)ډارن ، یرندُوکے ، ویرېدُونکے (۲)دروغژن

**ټُوبخے** :- (ټو + ب + خے) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: ټوبخي] د شګو ډېرے

**ټُوبکے** :- (ټو + ب + کے) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: ټوبکي ]غار ، سُوړه ، کُوتي ، کوندرے

**ټوبه** :- (ټو + به) اپ (ب، خ) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټوبې ]تالاؤ ، ژوره مزکه چې پُوله ئې غټه او دنګه وي۔

**ټوبے** :- (ټو + بے) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]د شګو ډېرے چې ګېرچاپېر ئې شاړ او پاس سرئې شین وي

**ټوپ** :- (ټو + پ) اپ (ب، خ) اِس ، مذ ، وا ، ج: ټُوپُونه ]۱) ټیوب ، د ربړ هغه پوست شان څیز چې په ټېر کښې دننه اچولے شي او د باد نه ډکېږي ، ټیپ (۲)ښېته ، مقرر وخت

**ډکول** :- (ب، خ) اِص ، ټیوب ته باد ورکول

**کښېښول** :- (ب، خ) اِص ، د مقابلې د اپره ښېته مقررول ، د مقابلې وخت ټاکل ، ټیپ کښېښول

**ټوپ** :- (ټو + پ) اپ ، اِس ، مذ ، فا ، ج: ټُوپونه ]۱)ورت ، جست(۲)ډېرې ، انبار ، دلی (۳)لویه ټوپۍ (۴)د شولو او جوارو دلۍ (۵)په ننګرهار کښې یو زوړ کندر

دروغژن تر ټوپ ورشي
د کابل کاند مذکور (خوشحال)

**ټوپ اچول** :- (اف)اِص ، ټوپ وهل ، ورتل ، ټوپ کول ، په څهٔ څیز پاس اوښتل

**په سر کول** :- اِص ، لویه ټوپۍ په سرول

**جوړول** :- اِص ، دلۍ جوړول ، ډېرې جوړول

**کول** :- اِص ،و ـــــــ ټوپ اچول

**وهل** :- اِص ،و ـــــــ ټوپ اچول

**ورټوپ کول** :- اِص ، وروړتل ، ور اوښتل۔

**ټوپال** :- (ټو + پا + ل) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: ټوپالونه ]جاله ، ښځولے ، منځاله

**توپ ټپانے** :- (توپ + ټ + پا + نے) ]اف: پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: توپ ټپاني ]د منډې مقابله ، د ټوپونو مقابله د ورتلو مقابله

**کول** :- (اف) اِص ، د ټوپونو مقابله کول ، د ورتلو مقابله کول ، د منډې مقابله کَول۔

**ټونچن** :- (ټو + پ + خ + ن) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: ټوپخنُونه ]د خاورې ډېرے۔

**ټوپ زن** :- (ټوپ + زَ + ن) اپ (ب ، خ) اِس ص ، مذ ]ټوپ کوُونکے ، ټوپ وهونکے ، ټوپي ، توپ مار

**ټوپک** :- (ټو + پَ + ک) اپ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ټوپکُونه ، ټوپکان ]ټیپک ، رائفل ، هغه وسله چې کارتوس پکښې اچولے شي ، او ډزې پرې کولے شي

زما ژبه نهٔ ده اور ده
ګذارونه د ټوپک کا (خوشحال)

**ایښودل** :- اِص (۱)ټوپک په مزکه کښېښول (۲)د مقابلې نه لاس اخستل ، پرهٔ منل (۳)د چاپه کور مبلمه کېدل

**چلول** :- اِص، (۱)ټوپک خلاصول په ټوپک ډز کول (۲)ټوپک یوځاے کول یا غونډول (۳)د خرخولو د پاره په کرایه ټوپک وړل

**ټوپک چلېدل** :- اِص(۱)ټوپک خلاصېدل ، په ټوپک ډز کېدل (۲)ټوپک غونډېدل (۳)د خرخولو د پاره په کرایه ټوپک وړل کېدل

**خالي کول** :- اِص (۱)د ټوپک نه کارتوس ویستل (۲)د ټوپک ټول کارتوسان چلول او کمر پټه تشه پرېښودل

**خلاصول** :- اِص و ــــــــ ټوپک چلول۔

**ډکول** :- اِص (۱)ټوپک ته کارتوس اچول ، ټوپک د ډزو د پاره تیارول (۲)د ټوپک نلۍ ته دارُو مړدکي وراچول

**مس کېدل** :- اِص د ټوپک کارتوس نهٔ چلېدل۔

**په ټوپک فیصله کول** :- اِص څهٔ خبره په جنګ او زور فیصله کول

**په ټوپک ویشتل** :- اِص (۱)په ټوپک ژوبل کول یا مړول (۲)چاته بده ، سپوره ستغه خبره کَول (۳)څهٔ بد خبر راوړل ، د غمناکې واقعې نه خبرول

**ټوپک زن** :- (ټوپک + زَ + ن) اپ (ب، خ) اس ص ، مذ ]ټوپک والا ، د ټوپک ښتن ، ټوپک ویشتُونکے ، ټوپک لَرُونکے۔

**ټوپک والا** :- (ټوپک + وا + لا) اپ ، اس ص ، مذ ]و ــــــــ ټوپک زن

**ټوپکی** :- (ټو + پ + کی) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ]د کاریز پټه حصه ، په کانړو پټه کړے حصه

**ټوپل** :- (ټو + پَ + ل) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ج: ټوپلُونه ](۱)شمله

(۲)د تاج طُرّه (۳)شُوکه ، سَر (۴)ب، خ: د خاورو ډېرې جمع کول متل: خاورې اوربل ايرې ئې په توپل (۵)توپ وهل

**توپلاے** :- (تو + پَ +لا+ ے) اِپ (ب ، خ) اِس ، مذ ، وا ، ج: تُوپلي ] د خاورو ډېرے متل: خاورې دې په خُلې او ايرې دې تُوپلا ے

**تـوپلي** :- (تو + پ + لي) اِپ ، فعل ]تـوپ وهي ، تـوپ کـړي ، دانگـي ، غورزنگ کوي

چې پيشو شي ډېره گېره په سپي توپلي
ډېر په ظلم کښې ځوک مه لره گېر گوره (حميد)

**توپ مار** :- (توپ + ما + ر) اِپ اِس ص ، مذ ]و ـــــ توپ زن

**توپن** :- (تو + پ + ن) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]جهان ، دُنيا ، نړۍ-

**توپناي** :- (تو + پ + ناي) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: توپنايان (مؤ ، وا: توپنايه ، ج: توپنايانې) اسېلانے ، سېل گرے-

**تـوپن ځرگند** :- (تـو + پ + ن + تس + ر + گ + ن + د) ]اف: پ (قاموس) ص ، مذ ]ډېر مشهور ، ځرگند ، جوت

**توپنے** :- (تـو + پ + ن + ړے) اِپ (ب، خ) اِس ، مؤ ، ج ]پـه لاس د شـگو نه جوړ کړي واړهٔ واړهٔ ډېرې چې ماشومان ئې د لوبو په ډول جوړوي - توپنے -

**توپنے** :- (تو + پ + نے) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]و ـــــ تُوپنے

**توپنۍ** :- (تو + پ + نۍ) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ]وړه ډېرۍ

**توپنـوے** :- (تـو + پ + ن + وَ ے) ]اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ]جهـان گيـر ، ملکُونه ايلووُنکے -

**توپۍ** :- (تو + پۍ) اِپ ، اِس معرفه ، مؤ ]د مردان په ضلع کښې د صوابۍ پـه تحصيل کښې يو مشهور کلے -

**توپۍ** :- (تو + پي) اِپ ، اِس ، مؤ ](۱)خولي ، کُلاه

د بادشاه په تخت وتاج پورې خندا کا
د درويـش بـوريـا تـوپـۍ پشمينه (خوشحال)

(۲)د غرهٔ غُنډۍ (۳)د چيلم سر ، د چيلم توپۍ (۴)يو قسم لوبه

**اخستل** :- اِص ، توپۍ په بيعه رانيول ، توپۍ يا خولي په قيمت اخستل ،

**بدلول** :- اِص ، (۱)نـوې تـوپـۍ د زړې پـه ځـا ے پيدا کـول (۲)د چـا سـره د دوستۍ په ډول د خپلې توپۍ بدلون کول

**توپۍ په پښو کښې کښېښول**:- اِص ، د چا نـه معـافي غوښتـل ، چاتـه د معـافۍ د پاره د منت زاري کولو پـه لړ کښې خپلـه توپۍ د هغهٔ پـه پښـو کښـې کښېښول -

**په سر کول** :- اِص (۱)توپۍ په سر کښېښول (۲)ذمه واري موندل

**کوزول** :- اِص (۱)توپۍ د سر نه لرې کول (۲)چاته سلامي کېدل

**وريـه سـر کـول** :- اِص ، (۱)د چـا پـه سـر تـوپۍ کښېښـول (۲)چاتـه ذمـه واري ورسپارل

**تـوپۍ** :- (تـو + پۍ) ]اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج: توپيـان ](۱)چـالاک (۲)توپ زن ، توپ کوُونکے -

**توپۍ گل** :- (تو + پۍ + گُ + ل) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]گـل بابونـه ، يوه دوائي

**توتار** :- (تو + تا + ر) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]چاړهٔ ، توکه

**توټکـه** :- (تـو + ټ + کـه) ]اف: پ (قـاموس) اِس ، مـؤ ، وا ، ج: تـوټکې ]د مچوغنې خولهٔ يا حلقه -

**توټکـه** :- (تو + ټ + کـه) ]ه ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: تـوټکې ](۱)تونـه (۲)هغـهٔ علاج چې د تجربې په بنا کولے شي (۳)هغه ډالۍ يا تحفه چې ناوې کره ورلے شي-

**پرې کول** :- اِص ، تجربه پرې کول -

**کول** :- اِص ، تجربه کول -

**توټکـه چـي** :- (توټکـه ، چي) ]اف: پ (قـاموس) اِس ص ، مـذ ]توټکـه مـار ، تونه مار ، توټکې کوُونکے

**توټکه مار** :- (توټکه + ما + ر) اِپ ، اِس ص ، مذ ]و ـــــ توټکه چي

**توټکۍ** :- (تو ټ کۍ) ]اف: پ (قـاموس) اِس ، مـؤ ](۱)د زنگـون سـترگه ، د گونـډې سـر ، د گونـډې تـوټۍ ، کـونۍ (۲)د لرگـي کاسـه ، تـوټۍ (۳)د کوناټي هډوکے

**توټل** :- (تو + ټ + ل) ]انگ ، اِس ، مذ ](۱)ميزان ، جمع (۲)غُنډ ، توټل

**توټل کول** :- اِص ، جمع کول ، ميزان کول ، يو ځا ے کول-

**کېدل** :- اِص ، جمع کېدل ، ميزان کېدل-

**توټه** :- (تو + ټه) اِپ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: توټې ](۱)ټکړه ، ټوکې ، تبله (۲)ب، خ : سُرنا

**ايستل** :- اِص ټکړه ايستل ، تبله بېلول ، توټه پرېکول-

**پرېکول** :- اِص ، و ـــــ توټه ايستل-

**لګول** :- اِص ، ټکړه لګول ، کپړې ته تبله لګول-

**توټه توټه** :- (تو ټه + تو + ټه) اِپ ، ص ]ټکړه ټکړه ، ذرّه ذرّه ، رنجې رنجې

**کول** :- اِص ، ټکړه ټکړه کول ، رنجې رنجې کول ، ذرّه ذرّه کول-

**کېدل** :- اِص ، ټکړه ټکړه کېدل ، رنجې رنجې کېدل ، ذرّه ذرّه کېدل-

**تـوټۍ** :- (تـو + ټۍ) اِپ ، اِس ، مـؤ ](۱)تـوټے ، د لرگـي جـوړه کاسـه (۲)د نلکې سَر

**تـوټي** :- (تُـو + ټـي) ]اف: پ (قـاموس) اِس ، مـؤ ](۱)ويـاړ نـه ، صـفت (۲)بدوينه ، بده غږېدل

**تُوټے** :- (تُو + ټے) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ وا ، ج: توټي ]صندوق

**تُوټې** :- (تُو + ټې) اِپ (ظفر) اِس ، مذ ، وا ، ج: تُوټي ]امت

**توټې پل** :- (تو + ټي + پَ + ل) اِپ (ظفر) اِس ، مذ ]د يو پړې ټال ، زانگو

**توټې توټې** :- (تو + ټي + تو + ټي) اِپ ، ص ]ذرّې ذرّې

**کول**:- اِص ، ذرّې ذرّې کول

**کېدل** :- اِص ، ذرّې ، ذرّې کېدل-

**توټېل** :- (تو + ټې + ل) ]اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: توټېلان ] ټيټېغے ، ټيټارے

**تُوخ** :- (تُو + خ) اِپ ، اِس ، مذ ]تُوخے ، کنگ

**تُوخل** :- (تو + خ + ل) اِپ ، مص مت ]تُوخے کول ، توُخېدل ، کنگېدل-

**تُوخله** :- (تُو + خ + له) اِپ ، اِس ، مؤ ]تُوخلے ، لويه تُوخے ، تُوخے ، پُوخلے

**تُوخول** :- (تُو + خ + و + ل) اِپ ، مص مت ]توخے وروستل ، په تُوخو کول

**تُوخولے** :- (تُو + خ + وَ + لے) اِپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: تُوخولي (مؤ : تُوخولې) تُوخے وروستلے ، په تُوخي سر کړے-

**تُوخونه** :- (تُو + خ + و + نه) اِپ ، حمص ]په تُوخي سر کونه ، تُوخے وروستنه-

**توخوُونکے** :- (تُو + خ + وُو + ن + کے) اِپ ، اِس فاع ، مذ ، وا ، ج: تُوخوُونکي ، مؤ : توخوُونکې) تُوخے وروستُونکے ، په تُوخي سر کوُونکے-

**تُوخهار** :- (تُو + خ + ها + ر) اِپ ، اِس ، صو ، مذ ]پرلـه پسې د تُوخي آواز ، پـه يو مخ تُوخېدنه

**ټوخي** :- (ټُو + خي) [پ ، اِس ، مؤ ]ټُوخے ، کنګ

**ورلوېدل** :- (اف) اِص ، په ټُوخي بيمارېدل ـ

**ټُوخے** :- (ټُو + خے) [پ ، اِس ، مذ ]ټُوخے

**ټُوخېدلے** :- (ټُـو + خـې + د + لـے) [پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: ټوخېـدلي (مـؤ : ټُوخېدلې)] (۱)ټوخے کړے ، په ټُوخي سر شوے (۲)چې چا د جېب نه پيسې راويستے وي

**ټُوخېـدنګ** :- (ټُـو + خـې + د + ن + ګ) [اف: پ (قـاموس) حمـص ]و ـــ ټُوخېدنه

**ټُوخېدنه** :- (ټُو + خې + د + نه) [پ ، حمص ] (۱)ټُوخېدنګ ، ټوخېدۀ ، ټُوخے کونه، په ټُوخي سر کېدنه (۲)د جېب نه پيسې راويستنه

**ټُوخېـدُونکے** :- (ټُـو + خـې + دُو + ن + کـے) [پ ، اِس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټُوخېـدُونکي (مـؤ : ټُوخېـدُونکې)] (۱)ټُـوخے کـوُونکے ، پـه ټُـوخي سر کېدُونکے (۲)د جېب نه پيسې راويستونکے ـ

**ټوخېدۀ** :- (ټُو + خې + دۀ) [پ ، حمص ]و ـــــ ټوخېدنه ـ

**ټـوډي** :- (ټـو + ډي) [انـګ ، ص ، مـذ ، وا ، ج: ټوډيـان ]خوشـامد ګـرے ، چاپلوس ، چمچه

**ټُور** :- (ټُو + ر) [انګ ، اِس ، مذ ]دوره ، ګشت

**ټُورنامنټ** :- (ټُو + ر + نا + مِ + ن + ټ) [انګ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټُورنامنټُونه ] د لوبو کاليزه غونډه ، د لوبو مقابله ـ

**ټورۍ** :- (ټو + رۍ) [پ (ب، خ) اِس ، مؤ ]اټارۍ ، بالاخانه ، برج

**ټورۍ** :- (ټو + رۍ) [پ ، کلمه ، مؤ ]دا ټکے د ټکۍ سره يو ځاے وئيلے شي ، ټکۍ ټورۍ

**ټُورے** :- (ټُـو + رے) [اف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج: ټُوري ]د جـوارو ورکوټے وږے ـ

**ټـورے** :- (ټـو + رَے) [اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: ټـوري ]د لاس وينځلو لوښے ، لاس وينځونے ، چلمچي

**ټوري** :- (ټو + ري) [انګ ، اِس ، مؤ ](۱)د برطانيے د پارليمنټ قدامت پسند ټولے (۲)يو راګ

**ټُوسان** :- (ټُو + سا + ن) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]غټه ږلۍ ـ

**ټوسټ** :- (ټو + س + ټ) [انګ ، اِس ، مذ وا ، ج: ټوسټُونه ](۱)د ډبل روټۍ پلنه نرۍ ټکړه ، توس (۲)د صحت جام

**ټُوغ** :- (ټُو + غ) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټُوغي (مؤ، وا: ټوغه ، ج: ټُوغې)] (۱)کُړک ، راکوږ ، ټيټ (۲)غُوټه

**ټُوغ تلل** :- اص ، (۱)په ټيټه ملا تلل ، کُړک کُړک تلل (۲)ځان نه ځرګندول ، ټُوغ ټُوَغ کېدل

**ټُوغ ټُوغ کېدل** :- (اف) اِص و ـــــ ټُوغ ټُوغ تلل ـ

**ټُوغک** :- (ټُو + غ + ک) [پ ، اِس ، مذ ]ټغے ، ټُوغکے ، د چرګانو مرض

**نيول** :- اِص ، ټغے راتلل ، چرګه په ټُوغکي بيمارېدل

**ټُوغکے** :- (ټُـو + غ + کـے) [پ ، اِس ، مـذ ](۱)د ټـوغ اسم تصـغير (۲)د چرګـو ټغے يا بيماري

**ټُوغـول** :- (ټُـو + غ + و + ل) [اف: پ (قـاموس) مـص مـت ](۱)ټيټـول ، کـږول ، کُوغـول ، کُړکـول (۲)لـرَول ، مـاتې ورکـول ، پـړه ول (۳)د لاس لانـدې راوستل

**ټُوغونـه** :- (ټـو + غ + و + نـه) [اف: پ (قـاموس) حمـص ](۱)ټيټـونـه ، کـږونـه ، کُړکونه (۲)لرونه ، ماتې ورکونه (۳)د لاس لاندې راوستنه

**ټُوغونکے** :- (ټُـوغ +وُو +ن + کـے) [اف: پ (قـاموس) اس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټوغوُونکي (مؤ: ټُوغوُونکې) ](۱)ټيټوُونکے ، کږوُونکے ، کړکوُونکے (۲)لَروُونکے ، ماتې ورکوُونکے (۳)د لاس لاندې راوستُونکے

**ټُوغېـدل** :- (ټُـو + غـې + د + ل) [اف: پ (قـاموس ، مـص لا] (۱)ټيټېـدل ، کُوغېدل ، کُړکېدل (۲)لَرېدل ، ماتې خوړل (۳)د لاس لاندې راتلل

**ټُوغېدنـه** :- (ټُـو + غـې + د + نـه) [اف: پ (قـاموس) حمـص ](۱)ټيټېدنـه ، کُوغېدنه ، کړکېدنه (۲)لَرېدنه ، ماتې خوړنه (۳)د لاس لاندې راتلنه

**ټُوغېدُونکے** :- (ټُو + غې + دُو + ن +کے) [اف: پ (قـاموس) فـاع ، مذ ، وا ، ج: ټُوغېـدُونکي (مـؤ: ټوغېـدُونکې)](۱) ټيټېـدُونکے ، کُوغېـدُونکے ، کُړکېدُونکے (۲)لَرېدُونکے ، ماتے خوړُونکے (۳)د لاس لاندې راتلونکے

**ټوقا** :- (ټو + قا) [پ (ظفر) اِس ، مذ ]ټوکا ، يو قسم شين چينجے

**ټوقمار** :- (ټـو + ق + مـا + ر) [پ ، اِس ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټوقمـاران (مـؤ ، وا : ټوقماره ، ج: ټوقمارې)]ټوقي ، ټوقې کوُونکے ، خوش طبع ، په خوږو خبرو خلق خندوُونکے ، ملنډے کوُونکے ، مسخره باز ـ

**ټوقه** :- (ټو + قه) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټوقې ]ملنډه ، مسخره

ځنګه ښاغلےَ شازلمے به وي دا
نن ئې يوه ټوقه له مزاره جوړه ده (مطيع الله قريشي)

**جوړول** :- اِص (۱)ملنډه جوړول (۲)په چا مزې اخستل

**جوړېدل** :- اِص (۱)لنډه جوړېدل (۲)په ټوقه بدلېدل

دَ هر ځواب نه به مې ټوقه جوړېدله دلته
سـمـه خـبـره کښې هم ژبه ترهېدله دلته (مطيع الله قريشي)

**کـول** :-اِص ، (۱)ملنـډه کـول ، مسـخره کـول (۲)پـه چـا دروغ اخسـتل ، چاتـه د ټوقې په ډول د لږ وخت د پاره دوکه ورکول

**کېدل** :- اِص (۱)ملنډه کېدل (۲)دوکه کېدل

**په ټوقو ټوقو کښې** :- اِص ، په ملنډو ملنډو کښې ، پـه مـذاق کښـې ، پـه خندا خندا کښيَ

**په ټوقه نۀ پوهېدل** :-اِص ، (۱)هغه څوک چې د ملنډې نه خوند نۀ شي اخستے (۲)د يوې خبرې سرے

**ټوقې ګڼل** :- اِص (۱)ملنډه شمارل (۲)څۀ رښتيا خبره دروغ ګڼل

**ټوقې نه بوقه جوړېدل** :- اِص ، د ملنډې نه خبره رښتيا کېدل ، د مسخرې نه نقصان جوړېدل

**ټوقي** :- (ټو +قي) [پ ، اِس ص ، مذ ] [پ، اِس ص ، مذ]و ـــــــ ټوقمار

**ټوک** :- (ټو +ک) [اف: پ (قـاموس) ص ]هغـه ټوکې چې تارونـه ئې پـه خپلـو کښې ډېر پېوسرت وي ، ټينګ وو بدلے مهين ، هوار

**ټوک** :- (ټُو + ک) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټُوکان ، ټُوکونه ]حصه ، ټوټه

(۱) د کتاب جلد د ډوډۍ ټکړه ، د مرۍ ټوټه

د عيال د پاره ټېر تر سرومال شي
دلـجوي پـه يوه ټوک د فقير نۀ کا (رحمان)

**ټوک**:- اِص ټکړې ټکړې ذرّې ذرّې ، ټوټې ټوټې

د چشمانو په غمزو ئې
ژوبل ژوبل يم ټوک ټوک (رحمان)

**ټوک کول** :- اِص ذرې ذرې کول ، ټکړې ټکړې کول (۲) سترے کول

**ټوک کېدل** :- اِص ذرې ذرې کېدل ، ټکړې ټکړې کېدل سترے کېدل

**ټُوک** :- (ټُو + ک) [پ (ګن) اِس ، مذ]څيز

**ټوك وركول** :- (ګن) اِص ، په الماس يا بل تېرۀ څيز څيرل

**ټُوك** :- (ټُو + ك) [پ ، اِس ، مذ ]ټوكنه ، اعتراض

**وركول** :- اِص ، ټوكل ، اعتراض كول ، رټل ، د چا خبره تالاكول ـ

**ټوكا** :- (ټو + كا) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ]يوقسم شين چينجے

**ټُوكا** :- (ټو + كا) [پ ، اِس ، مذ]ټوكه فصل ټوكېدنه ، د فصل سروهنه ـ

**ټوكار** :- (ټو + كا + ر) [اف: پ (قاموس)اِس ، مذ ]كركه ، نفرت
(۱) چاړۀ ، خنجر ، ټوكه

**خوړل** :- (اف) اِص كركه كول ، په ځان بد لګېدل ، نفرت كول

**ټوكان** :- (ټو + كا + ن) [پ (سو) اِس ]و - ټاپوړے

**ټوك ذوت** :- (ټوك + ذو + ت) [پ (ب، خ) اِس ، مؤ ، مذ ]طاق جفت

**ټــوكر** :- (ټـو + ك + ر) [اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ (مـؤ ، وا :ټـوكره ، ج: ټوكرے ] بوډا ، زوړ ، عمر خوړلے

**ټوكر** :- (ټو + كَ + ر) [اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: ټوكرُونه ]
پنجره ، ټوكړ

**ټوكر** :- (ټو + ك + ر) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټوكران ]ټوټه ، ټكړه

**ټُوكر ټُوكر** :- (ټو + ك + ر + ټو + ك + ر )[پ ، ص ]ټكړې ټكړې ، ذرّې ، ذرې
ټوټې ، ټوټې

د هجران په شپه ئې درست ټوكر ټوكر شو
پـــــه ژړا ژړا مــــې زړۀ تـــر دوه ليـــمـــۀ لاړ (خوشحال)

**كول** :- اِص ، ټكړې ټكړې كول ، ټوټې ټوټې كول ، ذرې ذرې كول

**كېدل** :- اِص ،ټكړې ټكړې كېدل ، ټوټې ټوټې كېدل ، ذرّې ذرّې كېدل

**ټــوكره** :- (ټـو + ك + رَه )[پ ، اِس ، مـؤ ، وا ، ج: ټـوكړې ]غټـه ټـوكرۍ ، لويه شكرۍ

**ټوكرۍ** :- (ټو + ك + رۍ )[ه، اِس ، مؤ ]شكرۍ

**ټوكرۍ كول** :- (ب ، خ )اِص ،راپرزول ، په وهلو وهول د بُوسو سخے جوړول ـ

**كېدل** :- (ب، خ ) اِص ، وهلې كېدلد يخنۍ له كبله پښې راټولول

**ټــوكرے** :- (ټـو + ك + رَے )[اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ وا ، ج : ټـوكري ] كپړا رخت ټكرے ، ځادر ، پټكے

**ټوكرے** :- (ټو +ك + رے )[پ (ګن) اِس ، مذ ، وا ، ج: ټوكري ]د چرګو يا زانو ايسارولو يا بندولو پنجره

**ټُوكرېيل** :- (ټو + ك + رې + ي + ل )[اف: پ (قاموس) مص ]ټوك ټوك كول ، ټوټې ټوټې كول ـ

**ټُوكرېيلے** :- (ټُو + ك + رې + ي + لے )[اف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ټوكرېيلي (مؤ: ټوكرېيلے ]ټوكړې ټوكړې ټوكړې ټوټې ټوټې كړے ـ

**ټُوكرېينګ** :- (ټُو + ك + رې + ي + ن + ګ )[اف: پ (قاموس) حمص ]
و- ټُوكرېينه ـ

**ټُوكرېينه**:- (ټُو + ك + رې + ي + نه )[اف: پ (قاموس) حمص ]ټُوكرېينګ ، ټكړې ټكړې كونه ، ټوټې ټوټې كونه ـ

**ټُوكرېيُونكې** :- (ټُو +ك + رې + يُو + ن + كے )[ اف: پ (قاموس) فاع ، مذ ، وا ، ج: ټُوكرېيُونكي، (مؤ: ټوكر ېيُونكې )]ټكړې ټكړې كوُونكے، ټوټې ټوټې كوُونكے

**ټوكړ** :- (ټو + ك + ړ )[اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]و - ټوكر

**ټُوكړه** :- (ټو + ك + ړه )[پ ، ه : ټكړا ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټوكړې ] ټوټه
خوبرويان به د سپوږمۍ ټوكړه راواخلي
كه رحمان كچكول په لاس كښې قلندر شي

**په ټوكړه صبر كول** :- اِص ،په لږ څۀ راضي كېدل ، په يوه ټوټه راضي كېدل
كه آخر شو د يار حُسن عيب ئې نشته
د غــريب پــه ټوكړه صبر كا غريب زما (حميد)

**ټُوكل** :- (ټو + ك + ل )[اف: پ (قاموس ، مص مت ]كوټل ، وهل ، ټكول

**ټوكل** :- (ټو+ ك + ل )[پ (ب، خ ) مص مت ]د چا خبره تـالاكـول ، ټـوك وركـول ، اعتراض كول ـ

**ټُوكل** :- (ټُو + ك + ل )[پ (ګن ) مص مت ]څيرل ، په الماس يا پـه بـل تېـرۀ څيـز څيز وركول ټوك وركول ځاے په ځاے سُورے كول

**ټوكلے** :- (ټو + كَ + لے )[پ(ب، خ ) مف ، مذ ، وا ، ج : ټُوكلي (مؤ: ټُوكلې ) ]
رټلے ، اعتراض كړے

**ټُوكلے** :- (ټُـو + ك + لـے )[اف: پ (قـاموس) مـف ، مـذ ، وا ، ج: ټـوكلي (مـؤ: ټوكلې )]كُوټلے ، ټكولے ، وهلے

**ټوكلے** :- (ټو + ك + لے )[پ (ګن) مف ، مذ ، وا ، ض؛ ټُوكلي (مؤ: ټُوكلې )]
(۱) څيرلے ، څير وركړے ، ټُوك وركړے ځاے په ځاے سُورے كړے

**ټُوكلے** :- (ټُو + ك + لے )[اف: پ (قاموس ، اِس ، مذ ]په لاس اوبدنه

**ټوكمار** :- (ټو + ك +ما + ر )[پ ، اِس ، ص ، مذ ]و ــــــــ ټوقمار ـ

**ټُوكنه** :- (ټو + ك + نه )[اف: پ (قاموس) حمص ]كوټنه ، ټكونه ، وهنه

**ټوكنه** :- (ټو + ك + نه )[اف: پ (قاموس) حمص ]كوټنه ، ټكونه ، وهنه

**ټُوكنه** :- (ټو + ك + نه )[پ (ګن) حمص ]څيرنه ځاے په ځاے سُورے كونه

**ټُوكنه** :- (ټو + ك + نه )[پ (ب ، خ ) حمص ]اعتراض كونه ، رټنه

**ټُوكولكے** :- (ټـو + كـو + ن + كـے )[اف: پ (قـاموس) اس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټُوكونكي (مؤ: ټوكونكې )]كوټُونكے ، وهونكے ، ټَكوُونكے

**ټوكونكے** :- (ټو + كو + ن + كے )[پ (ګن) اس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټوكونكي(مـؤ: ټوكونكې ) ]څېرونكے ځاے په ځاے سُوري كووُنكے

**ټوكوُنكے** :- (ټو + كو + ن + كے )[پ (ب، خ ) اس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټوكُونكي (مؤ: ټوكوُنكے )]اعتراض كوُونكے ، رټُونَكے ـ

**ټوكونے** :- (ټـو + كـو+ نـے )[ اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ وا ، ج: ټُوكـوني ]هغه ډوډۍ يا كُلچه چې د ټكالې د پخولو نه پس د خمبير د اُوړو نـه پخولے شي

**ټُوكه** :- (ټو+كه )[اف:پ (قـاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټُوكې ]هغـه غـوا چې پئ نه وركوي ، هغه غوا چې د لوښلو په وخت كمې پئ راپرېږدي ـ

**ټُوكه** :- (ټو +كه )[اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټولې ]د كـارېز كـوهے يـو قسم چرچنه

**ټُوكه** :- (ټُو + كه)[پ (ب ،خ +ګن ) اِس ، مؤ، وا ، ج: ټُوكې ]سُورے ، پز، څير

**وركول** :- اِص ، د دانې يا پړسېدلې ځاے په نشتر يا چاقو سُورے كول چې وينې زوې ترې راوُځي ـ

**وركېدل** :- اِص، دا نه يا پړسېدلے ځاے په نشتر يا چاقو سُورے كېدل ـ

**ټوكـه** :- (ټـو + كـه )[پ ، اِس ، مـؤ، وا ، ج: ټـوكې ]هغـه غټـه شـان چـاړۀ چـې قصـابان د غوښـې هـډوكے پـرې مـاتوي او زمينـداران پـرې ګيـا وړه وړه كوي ـ

**ټوكه** :- (ټو +كه )[پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټوكې ]و- ټوقه

**كول** :- اِص ټوقه كول ، مزې اخستل

**ټوكي** :- (ټو +كي )[پ ، ص ]ټوقي ، ټوقمار

**ټُوكے** :- (ټو +كے )[پ ، اِس ، مـذ ، وا ، ج: ټـوكي ]كپـړا ، ټـوكر ، ټوټـه اف: يـو تور رنګې بُوټے چې پلنې پاڼې لري او واړۀ واړۀ ګلونه كوي ـ

**ټــوکي** :- (ټـو+کي)[اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج: ټوکيـان ]بـزاز ، د کپړې سوداګر

**ټُوکے** :- (ټُو +کے )[اف: پ (قاموس) اِس،مذ ، وا ، ج: ټُوکي ]ټُوکيا ، هډکپ ، چاړۀ ، ټوکه

**ټُوکيا** :- (ټُو +ک + يا )[اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ]و-ټُوکې

**ټوکې ټکالې** :- (ټو +کے + ټ + کا+ لې )[پ ، اِس ، مؤ ، ج ]ټوقې ټقالې

**ټُوکېدل** :- (ټُو +کې + د + ل )[ پ ، مص لا ]د فصل سر وهل ، تېغ راوتـل ، بُوټے د مزکې نه راوتل

پرې به کله باران وشي
چې به وټو کېږي سوے (خوشحال)
د کپړې ځاے په ځاے سُوري سُوري کېدل ـ

**ټُوکېـدلے** :- (ټُـو +کـې + د +لـے )[پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: ټُوکېـدلي ، (مـؤ: ټوکېـدلې)] تېـغ راوتلے ، د فصـل سر وهلے کپـړا ځـاے پـه ځـاے سُوري شوې

**ټُوکېدنه** :- (ټـو +کـې + د + نـه )[پ ، حمص ](۱)ټوکېـدۀ ، تېـغ راوتـۀ ، د فصـل سروهنه (۲)د کپړې ځاے په ځاے سُوري کېدنه

**ټُوکېدُونکے** :- (ټُو + کې + دُو+ ن + کے )[پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټوکېـدُونکي (مؤ : ټُوکېدُونکې )](۱)تېغ راوتُونکے ، فصـل سروهُونکے (۲)کپـړا ځـاے په ځاے سُوري کېدُونکے

**ټُوکېدۀ** :- (ټو+ کې + دۀ )[پ ، حمص ]و ـــــ ټُوکېدنه

فقيران په فقيرۍ کښې بادشاهي کړي
تــوکېدۀ کړي په ډېران د کيميا حُسن (جناب کاکا خېل)

**ټول** :- (ټو + ل )[پ ، اِس ، مذ (مؤ، وا : ټوله ، ج:ټولې )]تمام همه ، کُل ، واړه

چې خپل اَختيار ئې ټول د خپل اشنا په لاسو ورکړ
رحـمت ئې پـه دا کار ش خو هم دا دے کار د زړۀ (خوشحال)
راغونډ ، يو ځاے
چې په شپه راسره ټول وو په زرګونه
په صبا ئې له ما واړه ځان په ځان کړۀ (خوشحال)

**ټول** :- (ټو + ل )[پ ، انګ : ټول ، اِس ، مذ ]يو قسم کپړا

**ټُول** :- (ټو + ل )[پ ، انګ : سټول ، اِس ، مذ ]ورکوټے مېز

**ټول** :- (ټو + ل )[انګ ، اِس ، مذ]د چونګۍ محصول ، ټېکس

**ټول** :- (ټ+وَ+ل )[اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، ج: ټولونه ]يو قسم څادر يا رومال

**ټولتون** :- (ټو+ ل + تُو + ن )[اف:پ (قاموس ) اِس ، مذ ]د غونډېدو ځاے ـ

**ټـول زېرمـې** :- (ټـو + ل + زے + ر + مـې )[اف: پ (قـاموس ) اِس ، مـذ ]بيـت المال ، سرکاري خزانه ـ

**ټولګر** :- (ټو + ل + ګَ + ر )[اف: پ (قـاموس ) اِس ، مذ ، وا ، ج: ټولګران (مؤ، وا : ټولګره ج: ټولګرې )]سوالګر ـ

**ټولګے** :- (ټو + ل + ګے )[پ ، اِس ،مذ ]ټولے جماعت

**ټولمشـــر** :-( ټـــو + ل + مَ + ش + ر )[اف: پ (قـــاموس ) اِس ،مـــذ ، وا ، ج : ټولمشران ] سرغندے ، لوے مشر

**ټولمشري** :- (ټول + م + ش + ري )[اف: پ (قـاموس ) اِس ، مـؤ ]امـارت ، لويـه مشري

**کول** :- (اف) اِص ، امارت کول د ټولمشري ذمه واري تر سره کول ـ

**ټولنه** :- (ټو+ ل + نه )[پ ، اِس ،مؤ ]مجمع ، غونډه ، اجتماعانجمن چنده

**کول** :- اِص ، (۱)غونډېدل، جمع کېدل(۲) انجمن جوړول(۳) چنده کول

**کېدل** :- اِص،مجمع جوړېدل ، غونډېدل ، اجتماع کېدلانجمن جوړېدل (۱) چنده کېدل

**ټولني ورځ** :- (ټو + ل + ني + و + رَ + دز)[اف: پ (قاموس ) اِس ، مؤ ] د جمعې ورځ

**ټولــواک** :- (ټـو + ل + وا + ک )[اف: پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج: ټولواکـان (مـؤ: وا: ټولـواکے ، ج: ټولواکـانې ) ] بادشـاه ، مختيـار ، کـل اختيـاره ، ټولواکے ـ

**ټولـواکي** :- (ټـو + ل + وا + کـي )[اف: پ (قـاموس ) اِس ، مـؤ ]بادشـاهي ، کـل اختياري ، ټولواکي

**ټوالوکے** :- (ټو + ل + وا + کے )[اف: پ (قاموس ) اِس ، مؤ ]و ــــ ټولواکي

**ټولـواګے** :- (ټـو + ل + وا + ګـے )[پ ، مـص مـت ]بـوژول ، يـو ځـاے کـول ، راغونډول، جمع کول ، ګړدول

چې وماته نصيحت کړ چې زر بنۀ دي
تــولــول بـــه کـاد زرو چې خبر وے (خوشحال)

**زړۀ ټولول** :- اِص، زړۀ صبر کول ، زړۀ ته تسله ورکول

کــه هــر څو په صبر زړۀ ټولوم نۀ شي
بې اختياره لکه موم وئيلے په نارشم (حميد)

**ټولُون** :- (ټو+ لُو+ ن )[پ ، اِس ، مذ ]غونډه ، جمع ، يو ځاے والے

پـــه هغو د هــوس د وړکي ټولُون نۀ کا
چې له غاړې ئې ځنځير د جنون وکيش (حميد)

**ټولونه** :- (ټو + ل + و + نه )[پ ، حمص ]بوژونه ، ګډوونه ، يـو ځـاے کونه ، راغونډونه ، جمع کونه

**ټُولُوونکے** :- (ټـو + ل + وُو + ن + کے )[پ ، اِس فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ټولـوُونکي (مـؤ: ټولـوُونکې )]بـو ژوُونکے ، ګـرَدوُونکے ، راغونـډوُونکے ، جمـع کوُونکے ، يو ځاے کوُونکے ـ

**ټوله** :- (ټو + له )[پ ، ص ، مؤ ]غونډه ، همه ، واړه ، ګرده

راتــه مـزکـه ټـوله څُوکه د شلګي شوه
په شلګي باندې مې راغللو مروان اوس (جناب کاکاخېل)

**ټوله** :- (ټو+ له )[پ ، اِس ، مؤ ]ګدائي ، دروېزه ، غوښتنه ، غوښته

**کول** :- اِص ، ګدائي کول ، دروېزه کول ، غوښتنه کول

**ټولې** :- (ټو +لې )[پ ، اِس ،مؤ ]ټولے ، جماعت

**ټولے** :- (ټو +لے )[پ ، اِس ، م ، وا ، ج: ټولي ]و ـــــــ ټولے

چــړې نه چې په ټولي کښې ئې غلط کړې
هوسۍ سترګې ګل رخسار دے هغه کس (خوشحال)

**ټولېدل** :- (ټو + لې + د + ل )[پ ، مـص لا ]جمع کېـدل ، ګړدېـدل ، غونډېـدل ، يو ځاے کېدل

چــې دا هــومـره آفتونه سره ټول شي
تروڅوک څرنګ ځنې کاندې اجتناب (رحمان)

**ســره راټولېــدل** :- اِص ، سـره يـو ځـاے کېـدل ، پـه يـو ځـاے راغونډېـدل ، راګړدېدل

**د چا کمبله ټولېدل** :- (اف) اِص ،د چا کمبله راګړدېدل ، د چا کمبلـه رايوځـاے کېدلتباه کېدل ، بېخ بنياد وتل

**ټولېدنه** :- (ټو + لې + د + نه )[پ ، حمص ]ټولېـدۀ ، ګړدېدنه ، غونډېدنه ، يو ځاے کېدنه ، بوژېدنه

**ټولېـــدُونکے** :- (ټـــو + لـــې + دُو + ن + کـــے )[پ ، مـــف ، مـــذ ، وا ، ج:

ټولېدُونکي (مؤ: ټولېدُونکې)اګرد بدُونکے ، غونډېدونکے ، يو ځاے کېدُونکے ، بوږېدُونکے

**ټولېدهٔ** :- (ټو + لے + ده )اِپ ، حمص ]و ـــــ ټولېدنه۔

**ټولي مشر** :- (ټو + لي + م + ش + ر )]اف: پ (قاموس)اس ص ، مذ ، وا ، ج: ټولي مشران) کماندان]

**ټُوم** :- (ټُو+ م)]اف: پ (قاموس)اِس ، مذ]تحریک ، په تلوسه کول ، پاره ول ، آماده کول مصلحت

**ټُومب** :- (ټُو + م + ب )]اف: پ (قاموس ، اس ،مذ ]سودا ، فکر تلوسه

**ټُومبل** :- (ټو + م + ب + ل )]اپ، مص مت ]ټُمبل ، ټُونبل ، ننه ويستل ، ښخول په غابنونو کښې خلال وهلد پام راګرځولو د پاره په چا غلے شان چُونګاره یا سګُونډاره لګول۔

**ټُومبلے** :- (ټُو + م + بَ + لے )]اپ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټومبلي (مؤ: ټُومبلې)]

(۱) ننه ويستلے ، ښخ کړے ، ټُونبلے په غابنونو کښې خلال کړے

(۲) سکونډارلے ، چُونګاره لګولے

**ټُومبنه** :- (ټُو + م + ب + نه )]اپ ، حمص ]ټُمبنه ، ټُونبنه ، ننه ويستنه ، ښخونه په غابنونو کښې خلال کونه سکونډارنه ، چُونګاره لګونه

**ټُومبُونکے** :- (ټُو + م + بو + ن + کے )]مؤ: ټُومبُونکې)]ټُمبُونکے ، ټُونبُونکے ، ننه ويستونکے ، ښخوُونکے په غابنونو کښې خلال کوُونکے سکونډارونکے ، چُونګاره لګوونکے

**ټُونبل** :- (ټُو + ن + ب + ل )]اپ ، مص مت ]و ـــــ ټُومبل۔

**ټُونبلے** :- (ټُو + ن + بَ + لے )]اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټُونبلي (مؤ: ټُونبلې)]

و ـــــ ټُومبلے

د چا تاج زرين په سر تر ملا خنجر وي

د چا په پنډ په سر په ملا ټنبلے لور (رحمن)

**ټُونبنه** :- (ټُو + ن + ب + نه )]اپ ، حمص ]و ـــــ ټُومبنه۔

**ټُونبُونکے** :- (ټُو + ن + بُو + ن + کے )]اپ ، فاع، مذ، وا، ج: ټُونبونکي (مؤ: ټُومبُونکې)]و ـــــ ټُومبُونکے۔

**ټُونډينه** :- (ټُو + ن + ډي + نه )]اف: پ (قاموس)اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټونډينې ]د جوارو وږے

**ټُونه** :- (ټو + ن + رَه )]اپ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټونې ]ټوټکه

**ټونه مار** :- (ټونه + ما + ر )]اپ ، اِس ص ، مذ ]ټوټکه مار ، ټوټکه چي

**ټُونګ** :- (ټُو + ن + ګ)]اپ، اِس ، مذ ]ټونګره ، ټُونګاره ، چُونډۍ ، سودا ، فکر ، تلوسه مصلحت ، مشوره

**ټُونګ سره يو کېدل** :- (اف) اِص ،د څو کسانو په يوه خلهٔ کېدل ، مصلحت يوکېدل۔

**ورکول** :- (اف) اِص ، ټُونګاره لګول څهٔ ته پاره ول

**ټُونګاره** :- (ټُو + ن + ګا + ره )]اپ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټونګارې ]چونډۍ ، سګُونډاره ، ټُونګ زېږے ، کنځل منبوکه وهل

هر کسبه وته خپل کسب ښهٔ ښکارېږي

څوک ميوې خوري څوک په غولو کښې ټونګارې (احمد دين طالب)

**ټونګره** :- (ټُو + ن + ګ + رَه )]اف: پ (قاموس)اِس ، مؤ ]ټُونګه ، منبوکه وهنه

**ټُونګرېيل** :- (ټُو + ن + ګ + رې + ي + ل )]اف: پ (قاموس) مص مت ]ټونګاره لګول ، چُونډۍ لګول ، سکونډاره لګول پټه نقصان رسول په منبوکه وهل

**ټُونګرېيلے** :- (ټُو + ن + ګ + رې + ي + لے )]اف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ټُونګرېيلي (مؤ: ټُونګرېيلې) ]ټونګاره لګولے ، چُونډۍ لګولے ، سکونډاره لګولے پټ نقصان رسولے په منبوکه وهلے

**ټُونګرېينه** :- (ټُو + ن + ګ + رې + ي + نهٔ )]اف: پ (قاموس) حمص ]ټُونګاره لګونه ، چُونډۍ لګونه ، سکونډاره لګونه په پټه نقصان رَسونه ، په منبوکه وهنه

**ټُونګرېيُونکے** :- (ټُو + ن + ګ + رې + يُو + ن + کے )]اف: پ (قاموس) فاع ، مذ ، وا ، ج: ټونګرېيونکي (مؤ: ټونګرېيُونکې)]ټُونګاره لګوُونکے ، چُونډۍ لګوُونکے ، سکوُنډاره لګوُونکے په پټه نقصان رسوُونکے په منبوکه وهُونکے

**ټُونګل** :- (ټُو +ن + ګ + ل )]اف: پ (قاموس) مص مت ]ټُونګه ورکول ، څوک په ګوته یا اشاره څهٔ خبرې ته متوجه کول

**ټُونګلے** :- (ټُو + ن + ګَ + لے )]اف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ټونګلي (مؤ: ټُونګلې )]ټُونګه ورکړے څوک په ګوته یا اشاره څهٔ خبرې ته متوجه کړے۔

**ټُونګوره** :- (ټُو +ن + ګو + ره )]اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ]اينګه ، هغه ښځه چې د وادهٔ په وخت کښې د ناوې سره ځي

**ټُونګوُنکے** :- (ټُو + ن + ګو + ن + کے )]اف: پ (قاموس) فاع ، مذ ، وا ، ج: ټُونګونکي (مؤ: ټُونګوُنکې) ]ټونګه ورکوُونکے په ګوته یا اشاره څهٔ خبرې ته متوجه کوُونکے۔

**ټُونګه** :- (ټُو + ن + ګه )]اپ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټُونګې ]ټونګاره ، منبوکه

(۱) چېږ ، بلوسه

**اچول** :- اِص ، ټُونګه وهل ، منبوکه يوتربله ورکول يو تربله چېږ کول

**وهل** :- اِص ،و ـــــ ټُونګه اچول۔

**ټُونګه** :- (ټُو + ن + ګه )]اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټونګې ]د ګوتې بند د پښې تلے

**ټې** :- (ټي )]اپ، حرف، مؤ، وا، ج: ټې ګانې ]د اب پ د پټۍ د پينځم ټکي آواز۔

**ټِـي اي** :- (ټي + اي )]انګ، اِس ، مؤ ]د ټربولنګ الاؤنس مخفف ، سفرخرڅه۔

**ټېبل** :- (ټي + بَ + ل )]انګ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټېبلُونه ] مېز ، تپائي

**ټېبل کلاته** :- (ټېبل + ک + لا+ ته)]انګ ، اِس ،مذ ]مېزپوش، هغه ټُوکے چې په مېز غوړولے شي۔

**ټي بي** :- (ټي + بي )]انګ، اِس ، مؤ ]د ټيوبر کلوسس مخفف ، تپ دق ،نرے رنځ، نري رنځ جراثيم

**ټيپ** :- (ټي + پ )]ه ، اِس ، مذ ]په خښتو سيمټ لګونه ، د سيمټو لېټے

**کول** :- اِص، د خښتو نه جوړ دېوال ، په سيمټو د لېټي په ذريعه پخول ، ټيپ ورکول۔

**ورکول** :- اِص، و ـــــ ټيپ کول۔

**ټيپ** :- (ټي + پ )]اپ( اش) اِس ، مذ ]په برخه چې کومه مزکه ورکړے شي نو په تيار فصل چې مالک د خپلې اندازې مطابق کومه حصه اخلي هغې ته وئيلے شي۔

**ټيپ** :- (ټي + پ )]اپ(ب، خ)اِس ، مذ ، وا ]ټُوپ ، نښته ، مقرر وخت۔

**کښېښول** :- (پ، خ) اِص و ـــــ ټُوپ کښېښول۔

**ټيپ** :- (ټي + پ)[انګ ، اس ، مذ ]فيته ، پيته ، تسمه ټُوټې ، د اُوبو نلکه هغه فيته چې آواز پکښې بند کولے شي

**کول** :- اص ،آواز په ټيپ کښې بندول۔

**ټي پاټ** :- (ټي + پا + ټ)[انګ ، اس ، مذ ]چائے داني ، چائينک۔

**ټي پارټي** :- (ټي + پا + ر + ټي)[انګ ، اس ،مؤ ]د چايو پارټي ، د چايو دعوت، د چايو بلنه

**ټيپ ټاپ** :- (ټي + پ + ټا +پ)[ه، اس، مذ]بنائست، ښکلا، ډول، ځان ښائيل

**ټيپر** :- (ټي + پ + ر )[پ، اس ، مذ ]شلغم ، يوه غُنډه شان سبزي چې په ژمي کښې کرلے شي ، پاڼې ئې د مولۍ غوندې وي او بېخ ئې غُنډه شان وي دا ځلور توکه نفاخ او مبهي دي

يــو چــڼه ، لــوبيا ، ګازره ټيپر (خوشحال)

**ټيپرکے** :- (ټي + پ + ر + کے )[اف:پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ټيپرکي (مؤ: ټيپرکۍ)]ټيټکے ، ټيمرکے ، مندرے ، غُونډ ټيټ شان سرے۔

**ټيپ ريکارډر** :- (ټيپ + ري + کا + ر + ډ + ر )[انګ ، اس ،مذ ]هغه مشين چې د بجلۍ يا بېټرۍ په ذريعه چلېږي او آواز پکښې بندولے شي ، او هم هغه آواز پکښې بيا آورېدلے شي۔

**ټيپۍ** :- (ټي +پۍ )[اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]د مارغانو معده ،يو قسم کشيده

**ټيټ** :- (ټي + ټ)[پ ، ص ، مذ ، (مؤ، وا: ټيټه ، ج: ټيټې)]کُوز ، کښته ، کوږ مندرے د ورکوټي قد خاوند پړ ، لَر

هومره سر دے وخپل خدا ے او ته ټيټ نۀ دے

لـکــه ټيـټ پـه لور د خـان او د سلطان ئي (رحمان)

**تلل** :- اص ، کښته تلل ، لاندې تلل ، سرکوزي کول

سرکشان به په قيامت پاخي سرکُوزي

د ځنـګل په مزل ټيټ ځي په ناکام لوړ (حميد)

**ټيټارے** :- (ټي + ټا + رَے )[پ (ګن) اس ، مذ ، وا ، ج: ټيټاري ]ټيټغے، هغه مارغۀ چې ډېر اُوچت الوزي او آواز کوي ، وائي چې دا باران غواړي۔

**ټيټاکے** :- (ټي + ټا + کے )[اف: پ (قاموس) اس، مذ ]مزکه ، جائيداد ، دوتر

**ټيټاکه** :- (ټي + ټا + که )[اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: ټيټاکې ]يوغرئيز بُوټے چې د کنجغرے په شان وي، ازغکے

**ټيټال** :- (ټي + ټا + ل )[پ، اس ، مذ ، وا ، ټيټالُونه ]خوشامنده ، لام لباس

نۀ مې طمع له چاده چې مدح ګو شوے

نــۀ مــې چــاسره لباس شته نۀ ټيټال (خوشحال)

(۱) کمينه توب، مکر، فريب ، ټګي ، دغا

راښکاره دي ستا مکرُونه

راځــرګند دے ستا ټيټال (خوشحال)

**کول** :- اص ، خوشامنده کول ، لام لباس کول ټګي برګي کول ، کمينه توب ځرګندول

**ټيټالے** :- (ټي + ټا + لے )[پ ، اس ص ، مذ ]چلولي ، ټګ ، دوکه باز ، خوشامندګر

نــوم ئي مــا خــله خوشحال وته په ژبه

مخ ئي تور که په ياري کښې ټيټالي وي

**ټيټپاس** :- (ټي + ټ + پا + س )[پ ، ص ، مذ ]خوشامنده ، لام لباس

**کول** :- اص ، خوشامنده کول ، لام لباس کول۔

**کېدل** :- اص، خوشامنده کېدل ، لام لباس کېدل۔

**ټيټتوب** :- (ټي + ټ + تو + ب )[پ، ص ، مذ ]ټيټوالے ، کُوزوالے

**ټيټ سترګے** :- (ټي + ټ + س + ت + ر + ګے )[پ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: ټيټ سترګي (مؤ: ټيټ سترګې )]شرمنده شرمېدلے ، کُوز سترګے ، نادم۔

**ټيټک** :- (ټي + ټ + ک )[پ (ګن) اس ،مذ ]د کدو په شان يوه سبزي چې د تورۍ هومره وي۔

**ټيټکه** :- (ټي + ټ + که )[اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]الړې

**ټيټکے** :- (ټي + ټ + کے )[پ، اس ، ص ، مذ ،وا ، ج: ټيټکي (مؤ:ټيټکۍ )] ټيپرکے ، مندرے ، ټيټ

**ټيټکۍ** :- (ټي + ټ + کۍ )[اف:پ (قاموس) اس ،مؤ ]د زنګانۀ ټُوټېئې ، وُنې ، د زنګون سترګه

**ټيټکي** :- (ټي + ټَ + کي )[اف:پ (قاموس) اس ، مؤ ]د حلالولو نه پس ټوپونه يا ټُوپلکے۔

**وهل** :- (اف) اص ، د حلالولو نه پس د څۀ څيز پورته پورته ورتل يا ټُوپونه وهل

**ټيټوالے** :- (ټي + ټ + وا + لے )[پ، اس ،مذ ]و ـــــ ټيټتوب۔

**ټيټول** :- (ټي + ټ + و + ل )[پ، مص مت ]کښته کول ، لاندې کول ، کُوزول

ښاخ د زلفو ئي په خپله خدا ے راټيټ کړو

ګنه زۀ د يــار تــر قد پــورې کــوتاه يم (رحمان)

(۱) پړول ، لَودل ، په څۀ خبره کښې لاندې راوستل

**سرټيټول** :- اص،سرکښته کول پړه منل ، لرې تسليمول په عبادت کښې مشغولېدل ، تسليم ورضا کول

که يوځله سره د خدا ے په لورې ټيټ کړے

پــه قــيــامــت به ســر بــلند ئي تر هر چا (رحمان)

**ټيټونه** :- (ټي + ټ + و + نه )[پ، حمص ]کښته کونه ، لاندې کونه پَړونه ، لَرونه

**ټيټوُنکے** :- (ټي + ټ + وُو + ن + کے )[پ ، اس فاع ، مذ ، وا ، ج: ټيټوونکي (مؤ:ټيټوونکې )]کښته کوُونکے ، لاندې کوُونکے پړوُونکے ، لروُونکے

**ټيټه** :- (ټي + ټه )[پ، ص ، مؤ ، وا ، ج: ټيټې ]زوال مندرۍ ښځه

**ټيټۍ** :- (ټي + ټۍ )[اف: پ (قاموس) اس ، مؤ ]د ټيټے مؤنث ، هغه ښځه چې اوږې ئې ټيټې وي ، کُوبړۍ د خاورو کاسه

**ټيټے** :- (ټي + ټے )[پ، اس ، مذ ، وا(مؤ: ټيټۍ )]کُوبړا ، چې اوږې ئې ټيټې وي ، هغه څوک چې سينه ئې ننوتې او ملا ئې باهر راوتې وي۔

**ټي ټي** :- (ټي +ټي )[انګ، اس ، مذ ]د ټرېولنګ ټکټ کلکټر مخفف ، د ريل ګاډي هغه عهده دار چې په روان ګاډي کښې ټکټونه ګوري۔

**ټيټېدل** :- (ټي + ټې + د + ل )[پ، مص لا ]کښته کېدل ، کُوزېدل

که د غُرونو په سر ګرځي سر ئې ټيټ شي

هــر چــې زړۀ ئــې د خوبانو په يرغل شي (رحمان)

(۱) د تعظيم د پاره سرکښته کول لرېدل ، پړېدل

**ټيټېدنه** :- (ټي + ټې + د + نه )[پ ، حمص ]کښته کېدنه ، کُوزېدنه ، ټيټېدۀ

(۱) د تعظيم د پاره سرکښته کونه پړېدنه ، لرېدنه

**ټيټېدُونکے** :- (ټي + ټې + دُو + ن + کے )[پ ، مف ، وا ، ج: ټيټېدُونکي (مؤ: ټيټېدُونکې )]کښته کېدُونکے ، کُوزېدُونکے د تعظيم د پاره سر کښته کوُونکے لَرېدُونکے ، پړېدُونکے

**ټيټېدۀ** :- (ټي + ټې + دۀ )[پ ، حمص ]و ـــــ ټيټېدنه

**ټيټغے** :- (ټي + ټي + غے )[اف: پ (قاموس) اس ،مذ ، وا ، ج:ټيټغي ]و۔ ټيټارے

**ټیچر** :- (ټي + چَ + ر )انګ، اس ،مذ ، وا ، ج: ټیچران ، (مؤ: وا ، ټیچره ،ج: ټیچرې )اُستاذ ، مُعلم ، مدرس

**ټیچري** :- (ټي + چَ + ري )انګ، اِس ،مؤ ]اُستاذي ، معلمي ، مُدرّسي۔

**ټېرے** :- (ټي + رَے )پ، اس ، معرفه ، مذ ] کوهاټ ضلع کښې د مشهور کلي نوم چې په څهٔ وخت کښې د ټيري د رياست د ګدی ځاے وو.

د بهرام لښکرې پروتې په ټېري دي
اُميد دے چې خداے زر کا شرمسار (خوشحال)

**ټیز** :- (ټي + ز )پ، اِس ،مذ، وا ، ج: ټیزان ، ټیزُونه ]تیز، تېغ ، د خښتې هغه باد چې په زور سره بهر ته اُوزي۔

**اچول** :- اِص ،تیز اچول ، باد پرېښودلمېدان پرېښول ، پَرېدل ، تيز پرېښول

**پرېښول** :- اِص، و ـــــــ تیز اچول۔

**ټیزاوڼ** :- (ټي + زا + و + ن + ڼ )پ، اِس ص، مذ (مؤ، وا: ټیزاوڼه ،ج: ټیزاوڼې )اتيزن ، تيزن

**ټیزن** :- (ټي + ز+ ن )پ، اِس ، ص ، مذ ، مؤ ، وا: ټیزونه ج: ټیزنې )اتيزن ، ټیزاوېډُونکے ، ډارن

**ټیس پیس** :- (ټي + س + پي + س )اف: پ (قاموس) ، اِس ، مذ ، مؤ: ټیسه پیسه )اسست پست آرام طلبه

**ټېسن** :- (ټي + س + ن )پ ، انګ ، سټېشن ، اس،مذ ، وا ،ج: ټېسنُونه ] د ريل ګاډي يا د اورګاډي د اُودرېدو ځاے ، هغه ځاے چېرته چې مسافر د اور ګاډي نه کوزېږي او ورخيژي۔

**ټیغ** :- (ټي + غ )اف:پ (قاموس )اِس ،مذ ، وا ،ج: ټېغونه ]اربړے

**ایستل** :- (اف) اِص، ټېغ کښل ، اربړے کول۔

**کښل** :- (اف) اِص، و ـــــــ ټېغ ایستل۔

**ټېغ** :- (ټي +غ )اف:پ (قاموس) اِس،مذ ،وا ،ج: ټېغي ]امرد که ، ارغند ، ارغه ، ټیک ، هغه غوز چې ماشومان لوبې پرې کوي۔

**ټیغ ټمبه** :- (ټيغ + ټَ + م + به )اف:پ (قاموس) ص ]بدهضم پرېشانه، خفه ، زهير

**کول** :- (اف)اِص ،بدهضمي پيدا کول پرېشانه کول ، خفه کول ، زهيرول

**کېدل** :- (اف)اِص،بدهضمي کېدل پرېشانه کېدل، خفه کېدل ، زهيرېدل

**ټیغ سترګے** :- (ټيغ + س + ت + ر + ګے )اف:پ (قاموس)اِس ، ص، مذ ، وا ، ج: ټیغ سترګي ،مؤ: ټیغ سترګې) ]رډ سترګے ، برغا سترګے ، هغه څوک چې سترګې ئې باهر ته راوتې وي۔

**ټیغکه** :- (ټي + غَ + که )اف:پ (قاموس) اِس،مؤ، وا ، ج: ټیغکې ]ټتغه ، يو قسم مرغۍ۔

**ټیغکے** :- (ټي + غ + کے )پ، اِس ، مذ ]ټيغي ، ټغې ، د چرګو بيماري۔

**ټیغے** :- (ټي +غے )اف:پ (قاموس) اِس ،مذ ]و ـــــــ ټیغکے۔

**ټیک** :- (ټي +ک )پ، اِس،مذ ، وا ، ج: ټیکُونه ، ټیکان ]چارګل ، د پوزې يوکالے ،

ټيک دے باچا پيزوان وزير دے
دا لونګين دې رسالدار په مخ کښې ځينه !
ټيکه ، د تندي يوکالے
د سرو ټيک شهزاده په جبين پروت دے
شـينکے خـال د مـحاصل په بنديوانو (رحمان)

**ټیکونه اینښول** :- (اف)اِص ،ټيکونه په پوزه کول ، چارګل په پوزه کول

**ټیک**:- (ټي +ک )پ، ه: ټهیک ، اِس ، مذ ]درست ، صحيح ، پوره ، سم

ټک ، د ګړۍ د ستنې آواز

**ټېک** :- (ټي +ک )پ، اِس، مذ ]ډډه ، تکيه آرام دمه د آرام ځاے

**کول** :- اِص، ټېک لګول ، ډډه لګول ، تکيه کول آرام کول ، دمه کول

**کېدل** :- اِص، ټېل لګېدل ډډه لګېدل ، تکيه کېدل آرام کېدل ، دمه کېدل

**لګول** :- اِص، و ـــــــ ټېک کول

**موندل** :- اِص، ډاډ ، موندل

**نهٔ درلودل** :- اِص ، آرام نهٔ کول ، ډډه نهٔ لګېدل

**وهل** :- اِص، ډډه لګول ، ټېک کول ، تکيه کول

**د پلارونیکهٔ ټېک** :- اِص ، د پلار نيکهٔ د استوګنې ځاے۔

**د ټېک ځاے نهٔ درلودل** :- اِص، د آرام ځاے نهٔ لرل، د استوګنې ځاے نهٔ لرل۔

**ټیکالخور** :- (ټي +کا +ل +خو +ر )پ(ب، خ )اس ص ، مذ (مؤ، وا: ټیکالخوره ،ج: ټیکالخورې) ]مړي خور ، ډوډي غړپ ، تالي څټخښتو ، ګېډه ور۔

**ټیکـال مـار** :- (ټـي +کـا + ل + مـا + ر )پ(ب، خ )اس ص،مـذ ]ټیکالـه ورکوُونکے ، سخي ، ښهٔ ځوان۔

**ټیکاله** :- (ټي + کا + له )پ (خ+ بنو )اِس ،مؤ ]ډوډۍ ، مړۍ ، ټیکله۔

**کول** :- اِص ، دعوت کول ، د ډوډۍ انتظام کول۔

**ټیکاله** :- (ټي + کا + له )اف:پ (قاموس) اِس ،مؤ ]ګُډي چرګ ، ملاچرګک

**ټیکانه** :- (ټي + کا + ن + رَه )پ، ه ټيکانه ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټیکانې ] ټيکانه ، د اوسېدلو ځاے استوګن ځاے، ټيکاونه۔

**ټیکانه** :- (ټي + کا + نه )پ، اِس ، مؤ ]ټيکانه اجاره

**ټیکاؤ** :- (ټي + کا + ؤ )پ، اِس ، مذ ]ډېره ، استوګن په دمه ، په آرام په يو ځاے ئې ټيکاؤ هيچرته نهٔ شي

لکــه سيــورے خـواو شا ده دا دُنيا (حميد)

**کول** :- اِص،په يو ځاے دېره کول آرام کول ، دمه کول

**کېدل** :- اِص ، په يو ځاے دېره کېدل آرام کېدل ، دمه کېدل

هېڅ ټيکاؤ مې چېرته نهٔ شي
کـه و غـرهٔ تـه اعتماد کړم (حميد)

**نهٔ پرکېدل** :- اِص ،دمه نهٔ پرکېدل ، بې آرامه کېدل په څهٔ ځيز ګذاره نهٔ کېدل ، وخت نهٔ پرتېرېدل۔

**ټیکاونه** :- (ټي + کا + و + نه )اف: پ (قاموس) اِس ، مؤ ] و ـــــ ټيکانه۔

**ټیکاوول** :- (ټي + کا + و + و + ل )پ ، مص مت ]دېره کول ، استوګن کول ، مېشتول، اوسول، ټيکولپه آرام کول ، دمه کول

**ټیکاوونه** :- (ټي + کا + و + و + نه )پ، حمص ]دېره کونه ، استوګن کونه ، ميشتونه ، اوسونه په آرام کونه ، دمه کونه

**ټیکـاووُونکے** :- (ټـي + کـا + و + وُ + ن + کـے )پ، اس فـاع ، مـذ ، وا ج: ټيکـاوُونکي (مؤ: ټيکـاووُونکې )]ډېـره کـوُونکے ، اسـتوګن کـوُونکے، ميشتووُنکے ، اوسوُونکے په آرام کووُنکے ، دمه کووُنکے۔

**ټیکاوېـدل** :- (ټـي +کـا + وې + د + ل )پ، مـص لا ]دېـره کېـدل ، اسـتوګنه اختيارول ، ميشتېدل ، ټيکېدل په آرام کېدل ، دمه کېدل۔

**ټیکټاکه** :- (ټي + ک + ټا + که )اف: پ (قـاموس) اِس ،مؤ ، وا ، ج: ټيکټاکې ]بُورداره غاليچه ، پشم داره قالينچه۔

**ټیـک خولے** :- (ټ + يَ + ک + خُو + لے )اف: پ (قـاموس) اس ، مـذ ]جهـاز ويشتُونکے توپه ، اينټي اير ، کرافټ ګن

**ټیکرۍ** :- (ټي + ک + رۍ )پ ، اِس ،مؤ ]غنډے ، ورکوټے غرګے۔

**ټپکړے** :- (ټپ + ک + رَے)اپ، اِس، مذ، وا، ج: ټپکړي ]څادر، پړونے، پټکے چکاله د جوارۍ پړ

**اخستل** :- اِص ،د جوارۍ پړاخستل ،د جوارۍ په ځاے کښې د جوار ګرونه ټپکس اخستل۔

**په سر کول** :- اِص ،څادر اغوستل ، څادر په سر کول د زنانو په صف کښې اودربدل ، د نرتوب او د غېرت د کار نه لاس اخستل۔

**ټپکس** :- (ټپ + ک + س)اانګ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ټپکسُونه ]محصول۔

**اداکول** :- اِص ، محصول ، ورکول ، محصول پرېکول ، ټپکس ورکول ، ټپکس پرې کول۔

**پرې کول** :- اِص، و ـــــ ټپکس ادا کول

**لګول**:- اِص، محصول لګول ،

**ورکول** :- اِص ، و ـــــ ټپکس ادا کول

**ټپکسټ بُک** :- (ټپ + ک + س + ټ + ب + ک)اانګ ، اِس ،مذ ] درسي کتاب ، هغه کتاب چې د نصاب په ډول د يو خاص جماعت د پاره په سرکاري ډول منظور شوے وي۔

**ټپکسټ بُک بورډ** :- (ټپکسټ + بُک + بو + ر + ډ)اانګ، اِس ص ، مذ ، وا ، ج: ټپکسټ بُک بورډُونه ]هغه اداره چې د نصاب د کتابونو د چاپ کولو، خورولو او منظورولو ذمه واري ئې په سر وي۔

**ټپکسټ بُک کمېټي** :- (ټپکسټ + بُک + ک + مې + ټي)اانګ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټپکسټ کمېټيانې ]هغه کمېټي يا ټولې چې د نصاب د کتابونو منظوري ورکوي۔

**ټپک سوے** :- (ټپ + ک + س + وے)اپ، مف، مذ ، وا ، ج: ټپک سوي دېره شوے ، ميشت شوے ، آباد شوے ]

**ټپکسي** :- (ټپ + ک + سي)اانګ ، اِس ،مؤ ، وا ، ج: ټپکسيانې ]د کرائې ګاډے ، د کرائې موټر ،بدمعاشه ښځه۔

**باړه کول** :- اِص، ټپکسي ، کرايه کول۔

**چلول** :- اِص ، د کرائې ګاډے يا موټر چلول۔

**کرايه کول** :- اِص ، و ـــــ ټپکسي باړه کول۔

**ټپکله** :- (ټپ + کَ + له)اف: پ (قاموس) اِس ،مؤ ، وا ، ج: ټپکلې ]و ټپکاله

زويه ورور مه شه چې ځوانمرد نه وي
مـرد د ټـپکلې مـرد د نبرد نه وي (خوشحال)
د ډوډۍ ککوړے د باجې ريکاټ

**ټپکلي** :- (ټپ + کَ + لي)اف: پ (قاموس ) اِس ،مؤ ]ټپکله ، ککوړے۔

**ټپکنيکل** :- (ټپ + ک + ني + کَ + ل)اانګ، اِس، مذ ]صنعتي فني

**ټپکنيکل سکول** :- (ټپکنيکل + س + کُو + ل)اانګ، اِس ،مذ ]د صنعتي تعليم ورکول مدرسه۔

**ټپکول** :- (ټپ + ک + و + ل)اف:پ (قاموس) مص مت ]و ـــــ ټپکاوول

**ټپکه** :- (ټپ + که)اپ ، ه : ټپکا ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ټپکې ]هغه خال شان چې هندوان ئې د رسم په ډول په تندي لګوي

لامې ځاے نه شي د ترکو په جرګه کښې
کـه د عـشـق ټـيکه وهلے زنار دار شم (حميد)
د تندي کالے ، ستن ، انجکشن
چې نظر دې په ټپکه د تور اوربل کړم
د جهان بادشاه د ځان مخې ته بل کړم (خوشحال)

**اغوستل** :- (ګن) اِص ،په تندي کالے للول يا ځوړند کول۔

**اېښول** :- اِص ، ټپکه وهل ،

**ټپکه لګول** :- اِصټپکه اېښول ستن لګول ، انجکشن کول

**وهل** :- اِص ، ټپکه اېښول ټپکه لګول ، ستن وهل ، انجکشن کول کنجوس کېدل ، د بنيا په شان خوي کول

**ټپکې اوربدل** :- (اف) اِص ،د ټپکې رنګ څڅبدل يا بهېدل کافربدل

**ټپکه** :- (ټپ + که)اپ، ه ، ټهېکه ، اِس ،مؤ ، وا ، ج: ټپکې ]اجاره د څهٔ کار کولو يا تجارت منظوري

**اخستل** :- اِص ، ټپکه کول ، کاراخستل ذمه واري قبلول ، ذمه اخستل

**کول** :- اِص ، و ـــــ ټپکه اخستل۔

**کېدل** :- اِص ، د څهٔ کار د کولو لوظ نامه او منظوري کېدل۔

**ورکول** :- اِص ، د څهٔ کار کولو منظوري ورکول ، اجاره ورکول

**په ټپکه اخستل** :- اِص ، په اجاره اخستل په ذمه اخستل

**په ټپکه ورکول** :- اِص ، په اجاره ورکول۔

**ټپکې** :- (ټپ +کې)اف: پ (قاموس) اِس ،مؤ ]يو قسم چرچنه چې په سر ئې نخښنه وي د تندي يو کالے

**ټپکېدل** :- (ټپ + کې + د + ل)اپ، مص لا ]دېره کېدل ، ميشته کېدل ، اوسېدل په آرام کېدل ، دمه کېدل ، سوکه کېدل

**د چا سره ټپکېدل** :- اِص ، د چا سره ميشت کېدل۔

**ټپکېدنه** :- (ټپ + کې + د + نه)اپ ، حمص ]دېره کېدنه ، مېشتېدنه په آرام کېدنه ، سوکه کېدنه ، دمه کېدنه

**ټپکېدُونکے** :- (ټپ + کې + دُو + ن + کے)اپ، مف ، مذ ، وا ، ج: ټپکېدُونکې (مؤ: ټپکېدُونکې )]دېره کېدُونکے ، ميشتېدُونکے په آرام کېدُونکے ، دمه کېدُونکے ، سوکه کېدُونکے

**ټپګه** :- (ټپ + ګه)اف: پ (قاموس) اِس ص ، مؤ ]کمزور او ډنګر غوايا ے ، مانده غُوځکے۔

**ټپګے** :- (ټپ + ګے)اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: ټپګي ]يو قسم خربوزه

**ټپل** :- (ټپ + ل)اپ ، اِس ،مذ ]ګنه ګونه ديکه ، ټپله ، ډغره

**وهل** :- اِص ، ټپله کول ، ديکه ورکول چاته ګسه ورکول ، چاته نقصان رسول د چاسره بدکاري کول

**ټپلټان** :- (ټپ + ل + ټا + ل)اف: پ (قاموس) اِس ،مذ ]ټپل ، جد ، ټال مټول ، آنې بانې د ماشومانو شور زوږ

**ټپل جد** :- (ټپ + ل + جَ + د)اپ (ظفر) اِس ،مذ ]و - ټپلټال

**ټپلرماسټر** :- (ټپ + ل + ر + ما + س + ټَ + ر)اانګ ، اِس ، مذ ]درزي

**ټپلماټپل** :- (ټپ + ل + ما + ټپ + ل)اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ] ديکے ، ټپلے۔

**کول** :- (اف)اِص ، ديکې ورکول ، ټپلې وهل

**کېدل** :- (اف)اِص، ديکې ورکولے کېدل ، ټپلې ورکېدل۔

**ټپلمار** :- (ټپ + ل + ما + ر)اف: پ (قاموس) اِس ،مذ ، وا ، ج: ټپلماران ]ټپلې وهُونکے ، ديکې وهُونکے۔

**ټپله** :- (ټپ + لَه)اپ، اس ،مؤ، وا ، ج: ټپلې ]ديکه ، ډغره د اوبو د مخې اړولو د پاره جوړ کړے کاڼيز بند د لرګو او د خشاکو هغه ګېډے چې د اوبو په لار کښې ښخ کړے شوے وي د ربل ګاډي په پټړۍ تلُونکے هغه ورکوټے شان ګاډے چې د کُرسۍ په شان جوړوي دوه

درې کسان پکښې کښېني او مزدوران ئې په ديکه بيائي۔

**ټېله کول** :- اِص ، ديکه کول ، ډغره ورکول وخت اړول ، ساعت تېرول

**ټېله کېدل** :- اِص ، ديکه ورکولے کېدل ، ډغره ورکولے کېدل

**ټېله ورکول** :- اِص ، ديکه ورکول ، ډغره ورکول۔

**ټېليفون** :- (ټې + لي + فُو + ن)[انګ، اِس ، مذ ]هغه آله چې د لرې لرې ځايونو سره خبرې پرې کولے شي۔

**ټېليګراف** :- (ټې + لي + ګ + را + ف)[انګ ، اِس ،مذ ]د تار لېږلو آله۔

**ټېليګرام** :- (ټې + لي + ګ + را +م)[انګ ، اِس ،مذ ]تار

**ټيم** :- (ټي + م)[پ، اننګ ، ټن ، اِس ،مذ ، وا ، ج: ټيمان ]ټين پيپه

**ټيم** :- (ټي +م)[انګ ، اِس ،مذ ، وا ، ج: ټيمُونه ]ټولے۔

**جنګول** :- اِص ، په ټولي مقابله کول ، د لوبې مقابله کول

**جوړول** :- اِص، ټيم خوښول ، د لوبو د پاره ټولے غوره کول

**خوښول** :- اِص ، و ـــــ ټيم جوړول۔

**ټېم** :- (ټې + م)[پ (عا) انګ : ټائېم ، اِس ،مذ ]وخت ، ساعت

**ټيمک** :- (ټي + مَ + ک)[اف: پ (قاموس) اِس،مذ ، وا ، ج: ټيمکونه ]د کېږدۍ يا د تنبو لويه ستن هغه لوے لرګے چې د اوښ د کټې نه باهر راوتے وي ، ډسه ورکوټے ټيم ټيمګنے ، ټيمګے۔

**ټيمګر** :- (ټي + م + ګَ + ر) [پ، اِس ص ،مذ ، وا ، ج: ټيمګران ]د ټين کار کوُونکے۔

**ټيمګنے** :- (ټي + م + ګ + ن + ړَے)[پ ، اِس تصغير ، مذ ]ټيمک ، ټيمګوټے ، ورکوټے ټيم۔

**ټيمګے** :- (ټي + م + ګے)[پ، اِس تصغير، مذ ] ټيمګنے ، ټيمک

**ټېخنے** :- (ټې + ن + خَے)[اف: پ (قاموس) اِس،مذ (مؤ: ټېخنۍ ]ډولے ، ځان ښايُونکے سړے۔

**ټېنس** :- (ټې + نَ + س)[انګ ، اِس ،مذ ]يوه لوبه چې په مېدان کښې جال لګېدلے وي او دوه يا څلور کسان لوبغاړي ريکټ په لاس د ربړ په غُونډسکي دا لوبه کوي

کوچنډے مېږۀ ته پرېږدي
دا ټېنس ته ځي ترپېږي

**ټېنک** :- (ټې + ن + ک)[انګ، اِس ،مذ ، وا ، ج: ټېنکُونه ](۱) هغه ګاډے چې د پهيو په ځاے د اوسپنې زنځير پکښې لګېدلے وي ، باډي ئې د اوسپنې وي او د مېداني جنګ د پاره استعمالېږي (۲) تالاؤ ، تالاب

**ټينګ** :- (ټي + ن + ګ)[پ، اِس ، مذ (مؤ، وا: ټينګه ، ج: ټينګې ]پوخ ، محکم ، مضبوط ، د نرم ضد کنجوس ، بخيل

که قدم دې د وفا په لارې ټينګ کړل
د خوشحال په پوهه دا ده رستمي

**ټينګ کېدل** :- اِص ، په يوه خبره پوخ اودرېدل ډېره کنجوسي ښکاره کېدل غصه ظاهرولپه خپته کښې د تکليف په حالت کښې په زور ځان قابو کول ، په يوه خبره کښې وچ په وچه معتبري کول

**پر دُنيا ټينګ** :- اِص ، په دُنيا مين ، بخيل ، کنجوس

**ټينګار** :- (ټي + ن + ګا + ر)[اف:پ (قاموس) اِس ،مذ ]محکمي ، مضبوطي ، پائيداري

**کول** :- اِص، محکمي کول ، پائيداري کول۔

**ټينګاؤ** :- (ټي + ن + ګا + ؤ)[اف:پ (قاموس) اِس ، مذ ]تړون ضبط وربط ، استحکام ، مضبوطيا

**ټينګتار** :- (ټي +ن + ګ + تا + ر)[پ (ګن) اِس مذ ]تاکيد ، ټينګتيا ، ټينګتوب

**کول** :- (ګن) اِص ، تاکيد کول ، ټينګتيا کول ، ټينګتوب کول

**ټينګتوب** :- (ټي + ن + ګ + تو + ب)[پ ، اِس ،مذ ]و ـــــ ټينګتار

**ټينګتيا** :- (ټي + ن + ګ + ت + يا )[پ، اِس ،مؤ ]و ـــــ ټينګتار

**ټينګرے** :- (ټي + ن + ګ + رَے)[پ (ب، خ) اِس ،مذ ]شاټينګه ، چټے ، معده

**ټينګړ** :- (ټي + ن + ګ + ړ)[اف: پ (قاموس) اِس ،مذ ]ترنګړ

**ټينګړۍ** :- (ټي + ن + ګ + ړۍ)[اف: پ (قاموس ) اِس ،مؤ ] ترينګلے

**ټينګل** :- (ټي + ن + ګ + ل)[اف: پ (قاموس ) اِس ،مذ ]په نوي پېزار د مضبوطتيا د پاره مېخونه وهل ، ټينګے۔

**ټينګوالے** :- (ټي + ن + ګ + وا + لے)[پ، اِس، مذ ]محکمي ، مضبوطي ، بخيلي ، کنجوسي تاکيد ، سپارښتنه

**ټينګون** :- (ټي + ن + ګو + ن)[پ، اِس ،مذ ]تاکيد ، سپارښتنه ، مضبوطي ، پوخوالے

**ټينګول** :- (ټي + ن + ګ + و + ل)[پ، مص مت ]محکم کول ، مضبوطول ، کلکول ، ټينګ کول چاپي کول ، کښې منډل، زور پرې کول ، مروړے ورکول مضبوط نيول

**ټينګونه** :- (ټي + ن + ګ + و + نه)[پ، حمص ]محکم کونه ، مضبوطه کونه ، کلکونه چاپي کونه ، زور ورکونه ، مروړے ورکونه ، کښې منډنه ، مضبوط نيونه

**ټينګوُونکے** :- (ټي + ن + ګ + وُو + ن + کے)[پ، اس ، فاع ،مذ ، وا ، ج: ټينګوُونکي (مؤ:ټينګوُونکې)]محکم کوُونکے ، مضبوطوُونکے ، کلکوُونکے چاپي کوُونکے ، کښې منډوُنکے ، مروړے ورکوُونکے، زور ورکوُونکے مضبوط نيوُونکے

**ټينګوُونے** :- (ټي + ن + ګ + وُو + نے)[اف: پ (قاموس) اِس ، مذ ] مضبوطوُونے، هغه څيز چې بل څيز مضبوطوي ، ساتندوے

**ټينګه** :- (ټي + ن + که)[پ، اِس ،مؤ ] ، ټينګون ، سپارښتنه محکمي ، مضبوطتيا ، پوخوالے

يوۀ کاڼي د اجل ته ټينګه نۀ ده
که پچه کاندې پخه کلال د عُمر (جناب کاکاخېل)

ټينګرے ، معده ، چټے ، شاټينګه ، ناغه ، تړون

**ټينګه کول** :- (اِص) تاکيد کول ، د يوې خبرې بيا بيا سپارښتنه کول، په څۀ خبره ډېر زور اچول تړون کول ، ناغه کول

**په ټينګه ورته وئيل** :- اِص ، ډېر په تاکيد وېنا کول ، په زور سره ورته وئيل۔

**ټينګي** :- (ټي + ن + ګي)[اف: پ (قاموس) اِس ،مذ ]و ـــ ټينګل۔

**ټينګېدل** :- (ټي + ن + ګے + د + ل)[پ ، مص لا ] مضبوطېدل ، پخېدل ، کلکېدل ، سختېدل ، په څۀ خبره اودرېدل ، د درد يا غصې له کبله په خپل ځان ور اچول ، څۀ خبره نۀ منل

**ورته ټينګېدل** :- اِص ، په خبره زور اچول ، مقابلې ته سم اودرېدل

**ټينګېدنګ** :- (ټي + ن + ګے + د + ن + ګ)[اف: پ (قاموس) حمص ]و ـ ټينګېدنه۔

**ټينګېدنه** :- (ټي + ن + ګے + د + نه )[پ، حمص ] ټينګېدنګ ، مضبوطېدنه ، پخېدنه ، ټنګېدۀ، په څۀ خبره اُودرېدنه ،د درد له کبله په ځان زور کونه۔

**تینګېــدُونکے** :- (تېــي + ن + ګــې + دُو + ن + کــے) [پ، مــف ،مــذ وا ، ج: تینګېدُونکي (مؤ: تینګېدونکې)] مضبوطېدُونکے ، پخېدُونکے ، په ځۂ خبره اودرېدُونکے ،د درد له کبله په ځان زور کوُونکے

**تینګېدۂ** :- (تېي + ن + ګې + دۂ) [پ ، حمص او ـــــ تینګېدنه .

**تیوب** :- (تېِ + و + ب) [انګ ، اِس ، مذ ،وا ، ج: تیوبُونه] هغـه نلۍ چې د ربړ یا شیشې نه جوړه وي ، د ربړ هغه نلۍ چې په پهیه کښې دننه پرته وي او دباد نه ډکولے شي ، د ملهمو بوتلګے .

**تیوټا** :- (تې + یو + ټا) [اس ،مذ ] یـوه جاپـاني کمپنـۍ چې لارۍ مـوټرې ئې مشهورې دي .

**تیوټر** :- (تېي + و + ټَ + ر) [انګ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: تیـوټران (مؤ، وا: تیـوټره ج: تیوټرې) ] اتالیق ، اُستاد

**تیوټرکــه** :- (تېــي + و + ټ + رَ + کــه) [اف: پ (قــاموس) اِس ،مــؤ ،وا ، ج: تیوټرکې ]یو قسم مرغۍ چې د اوبو په غاړۂ ګرځي .

**تیونال** :- (تېي + ؤ + نا + ل) [انګ ، اِس ، مذ ]د نشې یو قسم ګولۍ .

**تیونالے** :- (تېي + و + نا + لے) [پ تر ، اِس ص ، مذ ، وا ، ج: تیونالیان ] د تیو نال د ګولو نشئي

◈◈◈

# ث

**ث**:- (ثې) [ع ، اِس ، مؤ ، وا ، ض: ثې ګانې ]د عربۍ څلورم او د پښتو د الف بې د پتۍ شپږم توری ، دا توری په هغه لفظونو کښې راځي چې د عربۍ نه پښتو ته راغلي دي او پښتو کښې اکثر استعمالیږي .

**ثابت** :- (ثا + بَ + ت) ع، ص ، مذ (مؤ ، وا ، ثابته ، ج: ثابتې) ] پوره ، روغ ، سالم ، لواړ

د مات لوښي آواز کله ثابت خېژي
د هر چا عمل څرګند په خپل ګفتار شي (رحمان)

مضبوط ، پوخ ، محکم

چې ثابت ولاړ په دین دے
د خوشحال باندې سلام

**تېرول** :- (اِص) لواړ تېرول ، سالم تېرول ، شخوند نۀ پرې وهل.

**کښېښودل** :- اِص ،سالم کښېښول ، سم کښېښول

که قَدم چېرې ثابت کښېږدي په لارې
په دوهم قدم بیا ر په زړۀ پښېمان شي (خوشحال)

**ثابت** :- (ثا + بِ + ت) [ع، ص ، مذ (مؤ : ثابته ] رښتیاؤ ته رسېدلے ، ثبوت ته رسېدلے

**ثابت قدم** :- (ثابت + قَ + د + م) [ع ، اِس ، ص، مذ (مؤ: وا: ثابت قدمه ، ج: ثابت قدمې )] مستقل مزاج ، په خَپل لوظ قول ټینګ او پوخ .

**ثابت قدمي** :- (ثابت + قَ + د + مي) [فا ، اس ،مؤ ] مستقل مزاجي ، استقلال ، په اراده کلک پاتې کېدنه ، په خپلَه خبره ټینګ اُودرېدنه .

**ثابتول** :- (ثا + بِ + تَ + و + ل) [پ، مص مت ] ثبوت ورکول ، ظاهرول څرګندول ، سر ته رسولَ ، مضبوطول ، پوره کول .

هېڅ ثابته نۀ کړه چاد دې دنیا وفا
واړه مینې کاندې وفا په دا دُنیا (رحمان)

**ثابتونه** :- (ثا + بِ + تَ + و + نه) [پ ، حمص ] ثبوت ورکونه ، ظاهرونه ، څرګندونه ،سَرته رسونه ، پوره کونه

**ثابتوُونکے** :- (ثا + بِ + تَ + وُو + ن + کے) [پ، اِس فاع ، مذ ، وا ، ج: ثابتوُونکي (مؤ: ثَابتوُونکې )] ثبوت ورکَوُونکے ، ظاهروُونکے ، څرګندوُونکے ، سرته رسوُونکے ، پوره کوُونکے .

**ثابتېدل** :- (ثا + بِ + تې + د + ل) [پ ، مص لا ] ثبوت ورکېدل ، ظاهرېدل ، څرګندېدل ، سَرته رسېدل ، پُوره کېدل .

**ثابتېدنه** :- (ثا + بِ + تې + د + نه) [پ، حمص ] ثبوت ورکېدنه ، ظاهرېدنه ، څرګندېدنه ، ثابتېدۀ ، سرته رسېدنه ، پُوره کېدنه

**ثابتېدُونکے** :- (ثا + بِ + تې + دُو + ن + کے) [پ، مف ،مذ ، وا ، ج: ثابتېدُونکي (مؤ: ثَابتېدُونکې )] ثبوت ورکېدُونکے ، ظاهرېدُونکے ، څرګندېدُونکے، سرته رسېدُونکے ، پوره کېدُونکے

**ثابتېدۀ** :- (ثا + بِ + تې + دۀ) [پ، حمص ]و ـــــــ ثابتېدنه .

**ثاقب** :- (ثا + ق + ب) [ع، اِص ، مذ ]روښانه ، روڼ ، ځلنده ، برېښېدُونکے ، چڼکېدُونَکے

**ثالث** :- (ثا + ل + ث) [ع، اس ، عدد ، مذ ]دریم ګړے ، مېنځ ګړے ، منصف ، مَشر، فیصلَه کوُونکے

**جوړول** :- اِص ، منصف جوړول ، فېصله پرې کول ، دریم ګړے کول، ثالث کول

**ثالث کول** :- اِص ، وــــــ ثالث جوړول .

**کېدل**:- اِص ، و ــــــــ ثالث جوړېدل .

**ثالث نامه** :- (ثالث + نا+ مه) [فاتر، اِس ،مؤ ، وا ، ج: ثالث نامې ]هغه لیکلې فېصله چې دواړه فریقه ئې د مَینګړو په وېنا قبوله کړي .

**ثالثي** :- (ثا + لِ + ثي) [پ، اِس ،مؤ ]روغه ، جوړه ، د دوؤ فریقو په مینځ کښې فېصَله ، د دوؤ په مَینځ کښې د روغې جوړې خبرې کونه .

**ثاني** :- (ثا+ ني) [ع، ص ،مذ ]برابر ، په شان ، نظیر دویم

**ثبات** :- (ث + با + ت) [ع، اِس ،مذ ]قرار ، پوخوالے ، پائېداري ،قیام

په توبه کښې هسې رنګه ثبات راکړه
چې توبه مې ماته نۀ شي دوباره (خوشحال)

**لرل** :- اِص ، پوخوالے لرل ، قرار لرل ، مضبوطتیا لرل ، پائېداري لرل .

**ورکول** :- اِص ، قرار ورکول ، پائېداري ورکول ، قیام ورکول ، پوخوالے ورکَول

**ثبوت** :- (ثَ + بُو + ت) [ع، اِس ،مذ ، وا ، ج:ثبوتُونه ]رښتونوالے ، رښتوني ، دلیل ، شهادت ، د خبرې تصدیق

**ورکول** :- اِص ، دلیل ورکول ، شهادت ورکول ،د خبرې تصدیق کول، رښتونَي کول .

**ثرا** :- (ثَ + را) [ ع، اِس ،مذ]زمکه ، خاوره ، تاترین ، د زمکې لاندې حصه

تر ثَرا تر ثریا که پام اوکړې
په څلور کُنجه غوغا د محبت ده (خوشحال)

**ثـرَوت** :- (ثَ + ر + وَ + ت) [ع، اِس ،مؤ ]دولت ، مال ، تونګري ، موړوالے ، شته مني اختیار ، واک ، حَکومت

**ثُریا** :- (ثُ + رَ + ي + یا) [ع، اِس ،مؤ ]اُووۀ ستوري ، پرېمنے پروُونے ، پروین ، اُووۀ خوېندې د اُوو ستَورو جُومپک .

**ثقافت** :- (ثَ + قا + فَ + ت) [ع، اِس ،مذ ، وا ، ج: ثقافتونه ]دود دستور ، رسم ورواج ، د استوګنې چل .

**ثقافتي** :- (ثَ + قا + فَ + تي) [پ تر، اِس ،مذ ]د دود دستور سره تعلق لرُونکے ، رسم ورواج سره تړلے .

**ثقالت** :- (ثَ + قا + لَ + ت) [ع، اِس ،مؤ ]وزن ، پېتے ، دروند والے د یو لفظ ګران والے ، هغه ټکے چې فَصیح نۀ وي .

**ثقل** :- (ث + قِ + ل) [ع ، اِس ،مذ ]دُروند والے ، بَوج ، بار ، وزن

**ثَقلېن** :- (ثَ + قَ + لې + ن) [ع، اِس ،مذ ]دواړه جهانه د شیعه ګانو چې عقیده خدا ے تعالي او آل رسَول (ص)

**ثقه** :- (ث + قَه) [ع، اِس ،مذ ]معتبر ، اتباري چې قول او فعل ئې اتباري وي

**ثقیل** :- (ثَ + قي + ل) [ع، اِس ، مذ (مؤ ، وا: ثقیله ، ج: ثقیلې )]درُوند ، وزن

د بڼې په څېر ثقیل شه
چې ثقیل وۀ لکه غر (رحمان)

هغه څیز چې په هضمېدو کښې ګران وي هغه ټکے چې فصیح نۀ وي

**ثلاثي** :- (ثَ+لا+ثي) [ع، ص، مؤ] د دريو حرفونو کلمه د رباعي په ډول د دريو شعرونو کلام.

**ثُلث** :- (ثُ+ل+ث) [ع، ص، مذ] دريمه حصه

**ثمر** :- (ثَ+مَ+ر) [ع، اس، مذ] مېوه، ثمره

چې ئې درست صورت غلبلبل شي په اغزيو
وخوړمـــه شـــه د هـغـې ونـــې ثـمـر (رحمان)

فائده، ګټه، بدله

**ثمراخستل** :- اِص، مېوه بُودول فائده حاصلول، ګټه حاصلول

**پيدا کېدل** :- اِص، مېوه، پېدا کېدل، مېوه نيول

درېغه نخل د عشق نۀ وے زرغون شوے
چـــې د ښـاخــه ئـې د غـم ثـمر پـېدا شو (رحمان)

**خوړل** :- اِص، بدله موندل، فائده رسېدل

مېوه خوړل عاقبت به د يو خنډ له سينې وُزي
تــۀ چـې تـل پــه هر يو ښاخ باندې ثمرخورې (رحمان)

**کول** :- اِص، مېوه کول، مېوه نيول

لکه وېخ د زړې وُنې چينجي وخوري
په دا تېر عُمر به څۀ شاخ وثمر کړے (رحمان)

فائده کول، ګټه کول

**موندل** :- اِص، ګټه موندل، فائده حاصلول، بدله موندل

**ثمره** :- (ثَ+مَ+رَه) [پ، اس، مؤ] و ثمر

په معني پانې ګلونه دې خبرې
د سرې کرده، د ونې ثمره (خوشحال)

**ثمن** :- (ثَ+مَ+ن) [ع، اس، مذ] قيمت، اُجرت، بيعه

بخت چې چاته شاکه ملغلرې د عدن
نۀ پېرې د دۀ د مر غچيچو په ثمن

**ثُمن** :- (ثُ+م+ن) [ع، اس، عدد، مذ] اتمه حصه.

**ثمين** :- (ثَ+مي+ن) [ع، ص، مذ] قيمتي.

**ثنا** :- (ثَ+نا) [ع، اس، مؤ] تعريف، حمد، ستاينه، صفت

ثنا ئې ډېره ده تر حساب تېره ده
خوک به ئې کومه ثنا په ځاے کا (خوشحال)

**کول** :- اِص، ثناويل، تعريف کول، حمد ويل، ستائنه کول

هر بلبل به دې ثنا کړه که تۀ ګل شې
په خپل ځان خپله ثناځۀ پکار نۀ ده (رحمان)

**کېدل** :- (اِص) تعريف کېدل، ستاينه کېدل

**ويل** :- اِص، و ــــــــ ثنا کول

پــه هـغـو شـونډو چـې حمد ثنا وائي
هم هغه شُونډې بيا ډُوبې په شراب کړې (رحمان)

**په ثنامشغولېدل** :- اِص، په تعريف او صفت وخت تېرول، تعريف شروع کول

همېشه به سرنګون په فکرناست ئې
ورحمن هسې مشغول په ثنا مه شې

**د خداے ثنا کول** :- اِص، د الله پاک حمد ويل، د الله پاک لوئي بيانول

سوسن تــه ګـوره په هومره ژبه
بې حرف وصوته ثناد خدائې کا (خوشحال)

**ثناخوان** :- (ثَ+نا+خ+وا+ن) [فاتر، اس ص، مذ، وا، ج: ثناخوانان (مؤ، وا: ثناخوانه، ج: ثناخوانې)] تعريف کوُونکے، ثنا ويُونکے، مدح خوان

هر ماهي ئې په درياب کښې حمد وائي
هرمارغه ئې په چمن کښې ثناخوان دے (رحمن)

**ثناګر** :- (ثَ+نا+ګ+ر) [فاتر، اس ص، مذ] و ــــــ ثناخوان.

**ثواب** :- (ثَ+وا+ب) [ع، اس، مذ، وا، ج: ثوابُونه] اجر، بدله، عوض

تـۀ وخـپلو نيک وبدو ته نظر کا
چې بدي دې خوچندې ده له ثواب (رحمن)

**کېدل** :- اِص (۱) ګټه کېدل (۲) د څۀ کار کولو د پاره څوک چاته بهانه کېدل (۳) ښۀ کار کېدل، د ښو لاس رسېدل

د اوبـو ثـواب ئـې نۀ کېږي له لاسه
کـه په ګوټ او بوي عبن د حج ثواب وي (رحمان)

**ثواب ګټل** :- اِص، فائده حاصلول، اجر موندل د نېکۍ کار کول، نېک کار کول، د ښۀ کار اجر ګټل

**ګڼل** :- اِص، د نېکۍ کار شمارل، د عبادت جوګه شمارل، ښۀ کارحسابول

چې ثواب ګڼي عذاب د عاشقانو
د خـوبـانـو لـه مـذهـبه الغياث (حميد)

**لرل** :- اِص، ګټه لرل، اجر لرل، نېکي لرل د عبادت درجه لرل.

**وربخښل** :- اِص، د چا رُوح ته دُعا کول، د ختم يا خېرات ثواب د چا مړي په نوم بخښل.

**ورکول** :- اِص، بدله ورکول، اجر ورکول

کـه لـه مخه يوه خوا که حجابُونه
خداے به ورکه د خُوبانو ثوابونه (رحمان)

**په ثواب خبرېدل** :- اِص، د فائدې او ګټې قېمت معلومېدل

د دُنيا چارې فاني دي مـرد هغه دے
چـې خـبر شـي پـه ثواب او په وبال (رحمان)

**ثوابي** :- (ثَ+وا+بي) [پ، اس] د ثواب جوګه، اجر لرُونکے، د فائدې او اجرکار، د نيکۍ کار

**روژې ساتل** :- مح د ثواب او اجر په غرض روژه ساتل، د فرض روژې نه علاوه روژې ساتل تکليف تېرول، کراؤ زغمل.

**ثور** :- (ثو+ر) [ع، اس، مذ] غويائے، غوڅکے

په خبرو دې پوهېږم
زۀ لاهسې نه يم ثور (خوشحال)

آسماني برج د اُردي بهشت مياشت (۲۱ اپريل نه ۲۱ مئ)

مې شـتـه چـنـګ ونې شـتـه ساقي راشه باده راکړه
تـل بـــه بـهـار نـۀ وي چې تـېرېږي وخت د ثور (خوشحال)

◈◈◈

# ج

**ج** :- (جې+م)-[اس حرف-مذ-دا-ج: جيمان] د عربي د الف بې د پټۍ څلورم او د پښتو اووم توري دا ټکي ځينې ځايونه کښې د (ز) او (ژ) په ځاى هم وئيلې شي.

**جاب** :- (جا+بْ)- [اَنګ-اِس-مذ] -ځاى- اسامي- خدمت.

**جاب مونډل** :- (اِص- (۱) ځاى مونډل- څۀ کار مونډل. (۲) په څۀ اسامي مقرربدل.

**جابَر** :- (جا+بَ+رَ)- [اَنګ-اِس-مذ] په مل کښې د مزدروانو نه کار اخستُونکے مېټ.

**جابر** :- (جا+ب+رْ)- [ع-اس-مذ(مؤ-وا: جابره-ج: جابرې)] (۱) زورور- تکړه (۲) ظالم- جبرکوونکے- تاوان رسُوونکے.

**جابه** :- (جا+بَه)- [پ (ظفر)- اس-مؤ-وا-ج: جابې]- کوپۍ- دبه- د څرمنې نه جوړه هغه کوپۍ چې تېل يا غوړي په کښې اچولے شي.

**جابى** :- (جا+بْي)-[اَف: پ (قاموس)- اس- مؤ]- پېښنواز- خلکۍ- د ګېډونکو اوږد ګنډ ګور قميص.

**جاپانے** :- (جا+پا+نے)-[پ-اس-مذ-وا-ج: جاپانيان-مؤ: جاپانۍ)] (۱) د جاپان اوسېدونکے. (۲) د جاپان سره تعلق لرونکے.

**جاپاني** :- (جا+پا+نِيْ)-[پ-اِس-مؤ] (۱) د جاپان ژبه. (۲) د جاپان سره تعلق لرونکے.

**جاتکے** :- (جا+تْ+کَے)-[پ(ظفر)ه: جات-(اس-مذ-وا-ج:جاتکې] هلک- ووړکے- ماشُوم.

**جاټ** :- (جا+ټْ)-[ه-اس-مذ] (۱) يو قوم چې د زمينداري کاروبار کوي. (۲) تور- تورنګے. (۳) جټ- بې تعليمه- ناپوهه.

**جاج** :- (جا+جْ)-[پ-ه: جانچ- اس-مذ]- اندازه- قياس- جائزه.

**جاج اخستل** :- (اِص- اندازه لګول- اندازه اخستل- جاجل.

**جاج وهل** :- (اِص- فکر کول.

**جاج په کښې اچول** :- (اَف) اِص- په څۀ کار کښې اريکه اچول.

**د ادب جاج اخستل** :- (ظفر) اِص- ديوې ژبې د ادب جائزه اخستل.

**جاجل** :- (جا+جْ+لْ)-[پ-مص-مت] (۱) جاج اخستل- اندازه لګول. (۲) فکر انديښنه کول.

**جاجُونکے** :- (جا+جُو+نْ+کَے)-[اَف: پ(قاموس)- فاع-مذ-وا-ج: جاجوُونکي (مؤ: جاجوُنکې) غمجن- فکرمن- انديښمن.

**جاخه** :- (جا+خَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جاخې]- د ونې يا بوټي ښاخګې چې يو بل کښې ننوتې او تاؤ را تاؤ شوې وي.

**جاخه کول** :- اص-د ونُې يا بوټي ښاخګې يوبل کښې ننه ايستل.

**جاخه کېدل** :- اص- د ونې يا بوټي ښاخګې يوبل کښې ننوتل او تاؤ را تاؤ کېدل.

**جاجونتي** :- (جا+جُ+وَ+نْ+تِي)[ه-اس-مؤ] جے جے ونتي- يو قسم راګ

**جادو** :- (جا+دُوْ)- [ه-اس-مذ] کوډې منتر- ټونه-سحر.

يا جادو ئې په ځان چف کړو راته ښکاري جادوګره
سپوږمۍ تندر ده نيولې له دنيا ده مروره (مفتون)

**جادو اوړېدل** :- (اِص- جادو اپوټه کېدل- د جادو يا ټانه ټونو اثر اپوټه کېدل- په ځاى دبل خپله جادو کوُنکي ته نقصان رسېدل- کوډې په ځان را اوړېدل.

**جادو چلول** :- (اِص- جادوکول- کوډې کول

**جادو چلېدل** :- (اِص- د جادو يا د کوډو اثر کېدل.

**جادو کوزېدل** :- (اِص- د جادو اثر تلل يا لوے کېدل.

**جادو کول** :- (اِص- کوډې کول- ټونه کول.

دلبران کوډې جادو کړي زړونه اخلي
هغه وايه چې بې کوډو وي دلداره (رحمٰن)

**جادو کېدل** :- (اِص- کوډې کېدل- ټونه کېدل.

**د جادُو ګوډاګي** :- (اِص- (۱) چې په چا کوډې يا جادو کوي د هغۀ د نوم ګوډاګے. (۲) معشوقه- چې د خپل نظر په اثر عاشقان قابو کوي.

**جادو بيان** :- (جادو+بَ+يا+نْ) [فا-اس ص-مذ] چې د چا بيان په زړۀ غرق اثر کوي- په خولۀ کښې تاثير لرونکے.

**جادوګر** :- (جادُو+ګَ+رْ)-[فاتر- اس ص- مذ- وا-ج: جادوګران- مؤ-وا: جادوګره-ج: جادوګرې] (۱) جادوکوونکے- کوډګر. (۲) ټګ- دوکه باز.

**جادوګري** :- (جادو+ګْ+رِه)-[پ-اس ص- مؤ- وا-ج: جادوګرې](۱) د جادوګر مؤنث صيغه- جادوکوونکې ښځه. (۲) معشوقه- بې حده ښائسته ښځه.

**جادوګري** :- (جادو+ګر+رِيْ)-[پ-اِس-مؤ](۱)کوډې ګر- د جادوکار. (۲) ټګي ټوري- دوکه.

**جاډنګ** :- (جا+ډَ+نْ+ګْ)-[اَف: پ (قاموس)- اس-مذ-(مؤ-وا: جاډنګه ج: جاډنګې)]کمزورے- مانده- ډنګر- ټپ.

**جاړې** :- (جا+ړْې)-[اَف: پ(قاموس)-اس-مؤ] (۱) کمزورې او بېکاره اوښه (۲) زړه ښځه

**جاذب** :- (جا+ذ+بْ)-[ع-ص-مذ(مؤ-وا: جاذبه-ج: جاذبې] -جذب کوونکے- راکښُونکے.

**جاذب نظر** :- (جا+د+بْ+نَ+ظَ+رْ)-[فاتر-اس ص-مذ(مؤ-وا:جاذب نظره-ج: جاذب نظرې)] ښکلے- ډولے- چې سترګې پر خوږېږي.

**جاذب والے** :- (جاذب+وا+لَے) [پ تر-اِس-مذ] -ښکلا-ښائست- جاذبيت.

**جاذبيت**: (جا+ذِبي+يَ+تْ)[ع-اس-مؤ]و___ جاذب والے.

**جار** :- (جا+رْ)-[پ-اس-مذ] (۱) ځار- قربان- زار- صدقه. (۲) ډنډوره (۳) د شپېلۍ پرده. (۴) د مرزو د نيولو دپاره مصنوعي ځنګل چې ښکاريان دوګزې او جالونه لګوي. (۵) دو چوغو يو دجمع کولو ځاے. (۲) هغه جال چې د غلې او بُوس د ببلولو په وخت په درمند کښې لګولے شي چې باد بُوس نۀ وړي.

**جار کول** :- (اص- ځار کول- قربانول.

**جار وهل** :- (اَف) اص- نغاره وهل- ډنډوره وهل.

**په جار وئیل** :- (اص- په ځرګنده وئیل- په اُوچت اواز وئیل.

احمدشاه بادشاه په جار دا ووئیله
چې د غزا په نیت ځمه له کابله

**جار** :- (جا+رُ)-[ع-اس-مذ] - زېر- یا کسر ورکوونکے حرف.

**جار** :- (جا+رُ)-[اَنګ-اس-مذ] -جګ- د اوبو لوښے.

**جارایستل** :- (جار+اي+س+تّ+لُ)-[اپ-مص مت] (۱) بېرته ګرځول- قے کول- پاکي کول- له مخه کول. (۲) د لاړې نه واپس کول. (۳) بندول- جار باسل.

**جارایستلے** :- (جار+اي+س+تَ+لے)-[اپ- مف- مذ- وا- ج: جارایستلي (مؤ: جارایستلې)]- (۱) قے کړے. (۲) واپس کړے. (۳) بند کړے- جارباسلے.

**جارایستنګ** :- (جار+اي+س+تَ+نْ+ګ)-[اَف-پ(قاموس) حمص] -و___ جارایستنه.

**جارایستنه** :- (جار+اي+س+تْ+نَه)-[اپ-حمص] (۱) جارایستنګ- جارایسته- قے کونه. (۲) واپس کونه. (۳) بندونه. جارایسته- جارباسنه.

**جارایستونکے** :- (جار+اي+س+تُو+نْ+کے)- [اپ-فاع-مذ-وا-ج: جارایستونکي. مؤ: جارایستونکې]- (۱) قے کوونکے. (۲) واپس کوونکے. (۳) بندوونکے- جارباسونکے.

**جارایسته** :- (جار+اي+س+تَه)-[اپ-حمص]. و___جارایستنه. جاروتل

**جار باسل** :- (جار+با+س+لُ)-[اپ-مص مت]-(۱) و___ جارایستل. (۲) تړل- په سر کول- راځرخول.

واړه سر درد دے د مهرویو وریښې شوے
ځکه نوې میاشت ترسر جار باسي سر تړونے (حمید بابا)

**جارباسلے** :- (جار+با+س+لے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: جارباسلي- مؤ: جارباسلې]- (۱) و___ جارایستلے. (۲) تړلے- په سر کړے.

**جارباسنه** :- (جار+با+سّ+نَه)-[اپ-حمص].و___ جارایستنه.

**جارباسونکے** :- (جار+با+سُو+نْ+کے)-[اپ-فاع-مذ-وا-ج: جارباسونکي (مؤ: جارباسونکې]. و___ جارایستونکے.

**جارج** :- (جا+رُ+جْ)-[اَنګ-اس-مذ-وا-ج: جارجان]- د پېرنګیانو نوم.

**جارجټ** :- (جا+رُ+جَ+ټْ)-[اَنګ- اس-مذ] - یو قسم نرۍ رېښمینه کپړه چې لوپټه تربنه جوړوي.

**جارچي** :- (جا+رُ+چي)-[اپ (ظفر) اس-مذ] - ډنډورچي- نغاره کوونکے

**جارغلے** :- (جا+رُ+غْ+لے)-[اَف:پ(قاموس)- اس-مذ-وا-ج: جارغلي]- اَنغرے.

**جارکړونے** :- (جا+رُ+کْ+ړو+نے)-[اَف-پ (قاموس)- اس- مذ- وا- ج: جارکړوني]- هغه سرے چې چرګه په اګو کښېنوي. یوه اګۍ په کښې توره کړي، او د هغې نخښنه کړي اګۍ بچے د هم هغه سړي وي.

**جارګني** :- (جا+رُ+ګْ+نّي)-[اَف: پ (قاموس)- اس- مؤ]- کوڅه.

**جارُو** :- (جا+رُوْ)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: جاروګان]- جاروب- رېبځ- جارو- بُوهارۍ.

**جارو کول** :- (اص- (۱) جاړوکول- صفا کول سُتره کول. (۲) تالاکول.

**جاروکېدل** :- (اص- (۱) جاړوکېدل- صفا کېدل- سُترکېدل. (۲) تالاکېدل.

**جارواتۀ** :- (جا+رُ+وا+تۀ)-[اپ-حمص]- پښېمانه کېدل- بېرته ګرځېدل.

**جاروب** :- (جا+رو+بُ)-[فا-اس-مذ]- و______ جارُو.

چې په لاس دې د ناکس ورکړه حمید
درنه ړیره دې کړه سپکه تر جاروب

**جاروکول** :- (اص- و_____ جاروکول.

په هغه لاري چې پل ږدې هسې وایم
کـه بانـۀ کړم د هـغې لارې جاروب (خوشحال بابا)

**جاروتل** :- (جا+رُ+وَ+تّ+لُ)-[اپ-مص]-(۱) پښېمانه کېدل- بېرته ګرځېدل- د خبرې نه اوړېدل. وعده ماتول.

داغ د توهین ئې پل د لارې په مخ
چا چې په بېرته جاروتل زده کړل (حمزه)

**جاروتلے** :- (جا+رُ+و+تَ+لے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: جاروتلي-(مؤ: جاروتلې)]-(۱) پښېمانه شوے. بېرته ګرځېدلے- د خبرې نه اوړېدلے. (۲) ګېر شوے- ښخ شوے. (۳) قے شوے.

**جاروتنه** :- (جا+رُ+وّ+ت+نه)-[اپ-حمص]-(۱) پښېمانه کېدنه. بېرته ګرځېدنهنه- د خبرې نه اوړېدنه. (۲) ګېرېدنه- ښخېدنه. (۳) قے کېدنه.

**جاروتونکے** :- (جا+رُ+و+تُو+نْ+کے)-[اپ-فاع-مذ-وا-ج: جاروتونکي (مؤ: جاروتونکې)]-(۱) پښېمانه کېدونکے. بېرته ګرځېدنهونکے- د خبرې نه اوړېدُونکے. (۲) ګېرېدُونکے- ښخېدُونکے. (۳) قے کېدونکے.

**جاروکښی** :- (جا+رُوْ+کَ+ش+یا+کَ+خْ)-[اپ تر- اس-مذ]جاروووهُونکے صفایي کوُونکے.

**جاروګی** :- (جا+رُو+ګي)-[اپ-اس-تصغیر-مؤ]- وړُوکے جارو.

**جارول** :- (جا+ر+و+لُ)-[اپ-مص-مت]-(۱) تنستـه غـوړول. (۲) ځارول- قربانول.

**جارونه** :- (جا+رَ+وُ+نَه)-[اپ-حمص] (۱) تنسته غوړونه. (۲) ځارونه- قرباونه.

**جارووُنکے** :- (جا+ر+وُو+نْ+کے)-[اپ-اس- فاع-مذ-وا-ج: جارووُنکي-(مؤ: جارووُنکې)]- (۱) تنسته غوړووُنکے. (۲) ځارووُنکے- قربانوونکے.

**جارووُنے** :- (جا+ر+وُو+نے)-[اپ-فاع-مذ-وا-ج: جارووُني (مؤ: جارووُنې)]-(۱) ځادر- پټکے. (۲) تنسته غوړووُنکے. (۳) ځارووُنکے- قربانووُنکے.

**جاري** :- (جا+رِيْ)-[ع-ص]- (۱) روان. (۲) بهېدونکے. (۳) همېشه. (۴) قرباني.

**جاري کول** :- (اص- (۱) روانول- شروع کول. (۲) بهیول. (۳) قربانېدل.

**جاړېدل** :- (جا+رِيِ+د+لُ)-[اپ- مص لا]- (۱) زاړېدل- ځاړېدل- قربانېدل. (۲) تنسته غوړولے کېدل.

**جاړېدنه** :- (جا+رِي+د+نَه)-[اپ-حمص]- (۱) جاړېدۀ- ځاړېدنه- زاړېدنه- قربانېدنه. (۲) تنسته غوړېدنه.

**جاړېدُونکے** :- (جا+رِي+دُو+نْ+کے)-[اپ- مف-مذ-وا-ج: جاړېدُونکي -(مؤ: جاړېدُونکې)]-(۱) جاړېدونے- ځاړېدُونکے- زاړېدونکے قربانېدُونکے. (۲) تنسته غوړېدُونکے.

**جاړېدوني** :- (جا+رِي+دُو+ن ي)-[اپ-فاع- مذ-وا-ج: جاړېدُوني-(مؤ- جاړېدُونې)- و___ جاړېدُونکے.

**جاړېدۀ** :- (جا+رِي+دۀ)-[اپ-حمص] و_____ جاړېدنه.

**جاړ**:- (جا+ړ)-[اپ-اس-مذ]-(۱) جُلاب. (۲) ځنګل.

**جاړ کول** :- (اص جلاب کول.

**جاړ کېدل** :- (اص-جلاب چلېدل- د جلابو اثر کول.

**جاړبُوټی** :- (جاړ+بُو+ټۍ)-[اَف: پ-(قاموس)-اس-مذ] د جلابو بوټۍ- هغه بُوټۍ چې په جلابو کښې استعمالېږي.

**جاړجاځے** :- (جاړ+جا+ځے)-[اپ-ص-مذ]- په یوبل کښې ننښتے- په یو بل کښې ننوتے.

**جاړولـه** :- (جاړ+و+لـه)-[اَف:پ (قـاموس)- اِس-مـؤ]- يـو مشـهور بـوټے چې د جلابو په کار راځي.

**جاړه** :- (جا+ړَه)-[اِپ-اِس-مؤ-وا-ج: جاړې]- يو ازغن بوټے-.

**جاسـوس** :- (جا+سُـوْ+سْ)-[اِس-مـذ-وا: جاسُوسـان-مـؤ-وا: جاسوسـه-ج: جاسُوسې] پټ حال لټوُونکے- مُخبر- پټ خبرور کوُونکے.

د خپل عيب وته ړُوند شوے

د پردي عـيـب جـاسوسه (خوشحال)

**جاسُوسي** :- (جا+سُوْ+سِيْ)-[اِس-مؤ]- مُخبري- پټ حال معلومونه.

**جاسُوسي کول** :- (اِص- پټ حالات معلومول- مخبري کول.

**جاسوسي کېدل** :- (اِص- پټ حال معلومېدل- مخبري کېدل.

**جاغه** :- (جا+غَه)-[اَف: پ (قاموس)- اِس-مؤ-وا-ج: جاغې] د قميص غاړه.

**جاکټ** :- (جا+کَ+ټ)-[اَنګ-اِس-مذ-وا-ج: جاکټُونه]- واسکټ- نيم تنۍ.

**جاکړ** :- (جا+کَ+ړْ)-[اِپ-اِس-مذ] جکړ- باد باران- زُول.

**جاګے** :- (جا+ګَے)-[اَف: پ (قاموس)-اِس-مذ]-يخ شوے- موره شوے کرنګ شوے- مايه شوے- پړن-پړن.

**جاګېې** :- (جا+ګ+ئَے)-[اَف: پ (قـاموس)-اِس-مـذ]- د ګـواړي هغـه ډنګر يـا غوُټکے چې د ټولونه وړاندې ځي.

**جاګير** :- (جا+ګِي+رْ)-[فا-اِس-مذ-وا-ج: جاګيرونـه]- هغـه زمکـه يـا کلے چې د بادشاه يـا نـواب يـا حکومـت د طرفـه چاتـه د سـېرۍ پـه ډول ورکړے شوے وي- زميندارى.

ملك منصب جاګير زما تغير شو مال خال

دولس منصبدارے تاييني شول پائمال (خوشحال)

**جاګير اخستل** :- (اِص-جاګير حاصلول- د حکومت نه د انعام په ډول جائيداد لاس ته کول.

**جاګير ورکول** :- (اِص- د انعام په ډول زمکه ورکول.

**جاګير دار** :- (جاګير+دا+رْ)-[فا-اِس-مذ-وا-ج: جاګيرداران]- د جاګير خاوند- د زمکو خاوند- زميندار- تعلقه دار.

**جال** :- (جا+لْ)-[اِس-مذ-وا-ج: جالونه]- (۱) دام- لومه. (۲) دود دستور- رسم و رواج. (۳) مکرو فرېب- ټګي.

خوك غلا قمار کا داړې وهينه

چاوته ايښے د مکر جال دے (عليخان)

ستا د وروځو خال کوتره د هو ښا ده

تورې زلفې دې چاپېرې ترې جالونه (خوشحال)

**جال اچول** :- (اِص- جال ايښل- جال ايښودل- جال غوړول.

**جال ايښل** :- (اِص) و______ جال اچول.

**جال ايښودل** :- (اِص، و_____ جال اچول.

**جال جوړول** :- (اِص- (۱) د پېسونه جال تيارول. (۲) د غنې جال تنسته کول.

**جـال غـورزول** :- (اِص- پـه اوبـو کـښې د ماهيـانو د نيولـو دپـاره او پـه وچې د مارغانو د نيولو دپاره جال اچول.

**جـال غـوړول** :- (اِص- (۱) د مهيـانو نيولـو دپـاره پـه سـيند کـښې جـال اچـول. (۲) بل ته دوکه ورکولو دپاره تدبيرُونه کول- د چل فرېب کاروائي کول.

**جال لګول** :- (اِص- د مارغانو د نيولو دپاره جال اودرول.

**جال لګول** :- (اِص- مارغانو د نيولو دپاره جال اودرول.

**په جال کښې ايسارول** :- (اِص- (۱) هوسۍ يا نور ځنګلي ځناور په جال کښې ګېرول. (۲) چاته دوکه ورکول- چل او فرېب کښې راګېرول په جال کښې ايسارول.

**په جال کښې ايسارېدل** :- (اِص- (۱) پـه جـال کښـې ګېرېـدل. (۲) دوکـه کېـدل- د چا د ټګۍ په دام کښې ننښتل.

**په جال کښې ننښتل** :- (اِص- (۱) په جال کښې ګېرېدل. (۲) پـه څـۀ ګرانـه کشـاله اوړېدل. (۳) فکرونه کول. (۴) د چاپه دوکه او فرېب کښې ګېرېدل.

ننښتے وم ببګا په جال د فکر کښې بندي

غښتنه مې د يار خيال نيووته غوړندي (عليخان)

**د چـا پـه جـال کښـې راتلـل** :- (اِص-د چاپـه دوکـې کښـې ګېرېـدل- دفرېـب ښکارکېدل.

**د جال برخه** :- (اِص- د جال حصه- فالتو حصه- زياته حصه. متل: دا يو مې تور غاړے دے، بل مې د جال برخه.

**جالګے** :- (جا+ل+ګَے)-[اَف، پ (قاموس)-ه: جالا- اِس-مذ] (۱) د جولاګي جالـه- د غنې جال. (۲) کوځه- انغړے

**جالګے** :- (جا+ل+ګَے)-[اَف:پ (قاموس)- اِس-مذ-وا-ج: جالګې] پنجره.

**جالُوغ** :- (جا+لُوْ+غْ)-[اَف: پ (قاموس)- اِس-مذ]- د اَس د زين د لاندې اچولو لمځے چې ښه جوړ شوے وي.

**جاله** :- (جا+لَه)[اِپ-اِس-مؤ] (۱) ځاله- ښځوله- منجاله. (۲) د جولاګي جال.

**جاله جوړول** :- (اِص- کورګے جوړول- ځاله- ښځولے يا منجاله تيارول

تندرُونه خوشحالېږي خدا ے دځبر کړي

بيا د چا جاله جوړېږي خدا ے د خبر کړي (طاهر کلاچوي)

**جالـه** :- (جا+لَـه)-[اِپ-اِس-مـؤ-وا-ج: جـالې]- د مشـکونو يـا شـهتيرونونه جوړه بېړۍ يا کشتۍ.

درياب څۀ د جالې دپاره نه ځي که څوك وائي

په خپله خوښه دروُمي جاله هم ورسره بيايي (خوشحال)

**ورانه جاله** :- (ظَرف)-اِص-(۱) بېکاره کشتۍ. (۲) ګرانه کشاله.

سـيند خـوني څلـور خيګونـه بيـا هـر يـو سـره جـوړ نـۀ دے

څـۀ بـه جـوړ عليخـان ناسـت وي پـه دغـه ورانـه جالـه کښـې

**جَاله** :- (جا+له)-[اِپ-ه: جالا- اِس- مؤ]-(۱) يو قسم پرده چې جولاګي (غنې) يې په څۀ ځاے کښې جوړه کړي او په کښې اوسي. (۲) هغه سپينه پرده چې په سترګه کښې د ککۍ د پاسه پېدا شي- پوله.

**جالوان** :- (جا+ل+وا+نْ)-[اِپ (ظَرف)-اِس- مذ]- (۱) جالـه وان- د جالې مالك- د کشتۍ ځښتن. (۲) هغه سړے چې لويو لويو کارونو تـه لاس اچوي او د مشکلاتو نه ئې زړۀ نۀ لوېږي.

**جالول** :- (جا+ل+و+لْ)-[اَ:پ (قاموس)- مص مت]- مشهورول- رواج ورکول.

**جـالوُونکے** :- (جا+ل+وُوْ+نْ+کے)[اَف:پ(قـاموس)-(فـاع-مـذ-وا-ج: جـالوُونکي (مؤ: جالوونکې)- مشهوروُونکے- رواج ورکوونکے.

**جاله وان** :- (جالـه+وا+نْ)-[اَف: پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: جالـه وانـان]- جالوان- د جالې مالك.

**جالې** :- (جا+لې)-[اِپ-ه: جالي- اِس-مـؤ]- (۱) شـنه اوبـړي چې د اوبـو پـه ډنډ کښې پېدا کېږي. (۲) د اَوسپنې د تارونو نه جوړه سُوري سُوري پرده شان. (۳) نرۍ سُوري سُوري کپړه.

**جالېدل** :- (جا+لې+د+لْ)-[اَف-پ(قاموس) مص لا]-مشهورېدل. رواج موندل.

**جالېدنـه** :- (جا+لې+د+نـه)-[اَف: پ (قـاموس)-حمـص]- مشـهورېدنه. رواج موندنه.

**جالبـدُونکے** :- (جـا+لې+دُوْ+نْ+کَے)-[اَف:پ (قـاموس) مـف-مـذ-وا-ج:

جالېدُونکي-(مؤ: جالېدونکي)- مشهورېدُونکے- رواج موندونکے.

**جالينُوس** :- (جا+لي+نُو+سُ)-[ع-اس-معرفه-مذ]- د يونان يو مشهور حکيم چې د طبابت په فن کښې مشهور وو.

**جام** :- (جا+مْ)-[فا-اس-مذ-وا-ج: جامونه- جامه] کټورے- پيمانه- د څښلو لوښے.

دغـسـې وختونـه د تـوبـو د ماتـولو وي
جام چې وي شراب وي يو څوجمع وي رندان سره (مطيع الله قريشي)

دا اکـرامـونه دا انعامونه
د چا په ياد دي هسې کامونه
په بوي د ميو مست شم صوفي يم
ساقي راسر کړل ډك ډك جامونه (خوشحال)

چې دارو د درد و غم وي هغه مے
ساقـي راکړه هغه جامه پيا يے (رحمٰن بابا)

**جام پرېوتل** :- (اص-جام نسکورېدل- جام د لاسه ختل- لوښے غورزېدل.

چې نظر ئې دګُلرخ ساقي په مخ شو
د نرګس د لاسه جام پرېوت نسکور شو (حميد)

**جام تشول** :- (اص- پياله خالي کول- د کنډول نه اوبۀ څښل- د شرابو پيمانه په سر اړول.

**جام ډکول** :- (اص- پياله ډکول- په کنډول کښې اوبۀ را اخستل- د شرابو پيمانه ډکول.

**جام ګوټول** :- (اص- (۱) جام څښل. جام نوش کول. (۲) انتها ته رسېدل.

مـرګ يـو تريـخ جام دے درتـه نيولے
څو به تر خولۀ نيسې دا جام به ګوټ کړے (خوشحال)

**جام ماتول** :- (اص- (۱) لوښے يا کنډول ټوټې ټوټې کول- پيمانه ذرې ذرې کول. (۲) د شرابو څښلو نه توبه ويستل.

**جام نسکورول** :- (اص- (۱) پياله يا کنډول اپوټه کول. (۲) د شرابو څښل بس کول. د څښلو نه لاس نيول.

هم په لاس د ميو جام راکړې چې نوش کړه
بيا مې جام نسکوروې خود به پوهېږې (خوشحال)

**جـام نسـکورېدل** :- (اص- (۱) جـام اپوټـه کېـدل. (۲) څښـل بـس کېـدل. (۳) قسمت خرابېدل- نصيب بدلېدل.

که طالع ئې د دولت په شربت ډك کا
بيا آخر شي د کم عقل جام نسکور (خوشحال)

(۴) فنا کېدل- مړکېدل- د دنيا نه کوچ کول.

څۀ به شور نۀ وي د هند په مېخانه کښې
چې اورنـګ څخه دحکم جام نسکور شۀ (حميد)

**د صحت جام** :- (اص- د چا لوے سړي د تندرستۍ يا ښۀ صحت دپاره د دُعا په ډول ګلاس څښل.

**جام** :- (جا+مْ)-[انګ- اس-مذ]- د مېوو د اوبو او شيرې نه جوړه مُربه شان.

**جام جوړول** :- (اص- مُربه جوړول.

**جامباز** :- (جا+مْ+با+زْ)-[اف: پ (قاموس)- اس-مذ]- (۱) مست اوښ. نا باري اوښ- سرکښ اوښ. (۲) د خپلې رضا خاوند- نارامه.

**جامباز وهل** :- (اف) اص- (۱) مستانه چال کول. (۲) د ورزش حرکتونه کول.

**جامبره** :- (جا+مْ+ب+رَه)-[اف: پ (قاموس)- اس-مؤ-وا-ج: جامبرې]- د ببرې ونه.

**جامبړه** :- (جا+مْ+ب+ړَه)-[پ (ظفر)- اس-مؤ]- ګنه ګُوره- جاړه. هغه جاړه چې ځانګې ئې يو بل کښې ننوتې وي.

**جامد** :- (جا+م+دْ)-[ع-ص-مذ]-موره شوے- کلك- ټينګ.

**جام د جم** :- (جام+دَ+جَ+مْ)-[پ تر-فا: جام جم-اس- مذ]- د جمشيد بادشاه پيالـه چې د فـارس سائنسـدانانو جوړه کړې وه- وئيلے شي چې په کښې به د اسمان د ستورو مقام او د هغو په ذريعه د دنيا واقعات معلوملے شو.

آئينه د زنـګون ونيسه د مخ ته
په کښې وګوره احوال د جام د جم (حميد)

**جامع** :- (جا+م+عْ)-[اس-ص-مذ]- (۱) يوځاے کوُونکے. (۲) مکمل- پوره.

**جامع اللّغات** :- (جا+م+عُ+لْ+لُ+غا+تْ)-[ع-اس-مذ]-(۱) داسې لوے لُغت چې په کښې د يوې ژبې هر لفظ ډېر پـه تفصيل سره ورکـړے شـوے وي. (۲) د اُردو ژبې يو لغت.

**جامع مسجد** :- (جامع+مَ+سْ+جِ+دْ)-[ع-اس ص-مذ]- هغه جمات چې د جمعې نمونځ په کښې کېږي. لوے جُمات.

**جامعه** :- (جا+م+عه)-[ع-اس-مؤ]پوهنتون- يونيورسټي- دارالعلوم.

**جامعيّت** :- (جا+م+عي+يَ+تْ)-[ع-ص-مؤ]-جامع والے- پوره والے.

پـه عـلم او په هنر کښې ئې لاړۀ جامعيت
ادب کښې ئې تخليق لکه فطرت کاوه رنګين (حمزه شينواري)

**جامکے** :- (جا+مْ+کَے)-[اف:پ (قاموس)-اس-مذ]-لنډ پتلون.

**جامګے** :- (جا+مْ+ګے)-[پ-اس-تصغير-مذ-وا-ج: جامګي]-وړکوټے جام- کټورے.

**جامن** :- (جا+مَ+نْ)-[ه-اس-مذ]-يوه وُنه چې اُودي رنګې مېوه کوي.

**جامه** :- (جا+مَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جامې]-ژامه- زامه.

**جامه** :- (جا+مَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جامې]- کپړا- لباس- لته.

لکه قد جامه هم هومره
لـکـه حُسن هومره ناز (خوشحال)

**جامه اړول** :- (اص- (۱) جامه په بل مخ بدلول. (۲) کړۀ وړۀ بدلول.

**جامه ايشول** :- (اف) اص- (۱) جامه بدلول. (۲) کړۀ وړۀ بدلول.

**جامه سکڼل** :- (اص- د ناپ مطابق د جامو دپاره کپړا په قېنچي کټ کول.

غم د ترکو تر رحمٰن داسې چاپېر شو
لـکـه وُسـکـنـې جامه په چا خياط

**جامه ورته ګېدل** :- (اف) اص- د چا څېره او کړۀ وړۀ د بل چا سره ملاوېدل.

**جامه غوښتل** :- (اص- کپړې طلب کول.

کُـوم بـربنډ چې راشي نو زمانه جامه غواړي
ګويا زوړ مضمون راشي خو نوے سرنامه غواړي (حمزه شينواري)

**جامې اچول** :- (اص-جامې اغوستل- کپړې اچلو.

**جامې اغوستل** :- (اص) و_______ جامې اچلول.

که ساده جامې اغوندې ورته وائي
چې د شوم او د ممسك دے هسې چر (خوشحال)

**جامې ايستل** :- (اص- (۱) جامې کوزول- بربنډېدل. (۲) بې حيا کېدل. بې شـرمه کېـدل. (۳) د څـۀ کـار دپـاره څـوك ډېـر زيـات تنګـول. (۴) شرمول- بې عزته کول.

**جامې بدلول** :- (اص- نورې کپړې اچول.

**جامې پرېکول** :- (اص- (۱) جامې اخستل. (۲) کپړا پـه قېنچي کټ کول- جامې سکښتل.

**جامې سکښتل** :- (اص) و____ جامې پرېکول.

چې مـدام پـه وينو رنگ راځي حـميده!
ستا جامې ئې څهٔ د غم په ساعت سکښتې

**جـامې شـلـول** :- (اص- (۱) جـامې څيـرې کـول. (۲) ډېـر کوشـش کـول. (۳) جنگ کول.

**جـامې غـورزول** :- (اص- (۱) بربنډېـدل. (۲) د ناخوښـي پـه وجـه جـامې لـرې ويشتل. (۳) لېونے کېدل.

**جامې کتول** :- (اَف) اص- مړېدل- وفات کېدل.

**جامې کوُزول** :- (اص)و____ جامې ايستل.

**جامي** :- (جا+مِي)-[فا-اِس-مذ]- د فارسى ژبې يو مشهور شاعر.

عليخان چې په پښتو کړ
د جامي صاحب بيتونه

**جان** :- (جا+نْ)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: جانونه]- (۱) ځان. (۲) ډېر خوږ- زړهٔ ته نزدې.

دا به واړه له تا پاتوشي اے جانه
که ښې جُونه که اَسونه که اطلس (خوشحال)

(۳) د مينې تکے.

دا بې ياره عمر شمار په ژوندون نهٔ دے
ما ربښتيـا وايـه و يار ته د جان لفظ (عليخان)

(۴) لاحقه چې د اسم اخر ته لگي- لکه اميرجان- دلبرجان- گل جان.

**جان ته گوته نيول** :- (اص- ځان تـه گوتـه نيـول- ځان ملامتول. (۲) ځان پـه څهٔ کښې شمارول. ځان لوے سړے بلل.

**جان خوړل** :- (اص- (۱) ځان خوړل- غم کول. (۲) تکليف برداشت کول کړاؤ زغمل.

**جانا** :- (جا+نا)-[پ-ص]- جانان.

په جهان کښې مې ځان تهٔ ئې
نـهٔ چـې نـور پـه تا جاناگو (خوشحال)

**جانان** :- (جا+نا+نْ)-[پ-اِس-مذ-وا]- جان- جانا- محبوب- معشوق.

هجران هسې جانان بوتلو له مهجوره
گويا ځان ملك الموت ته بيمار ورکړو (عليخان)

**جانانه** :- (جا+نا+نه)-[پ-ص]-(۱) معشوقه. (۲) عجيبه.

څکه زاهد زهد کار د يو جنت دپاره
سربښندلے نهٔ شي په اوربل د جانانه (رحمان بابا)

**جانب** :- (جا+نِ+بْ)-[ع-اِس-مذ]- طرف- اړخ- خوا- رُخ.

د يـــارے مزے به لن فصام له وو
که د ښکليو جانبه ئې غبرگون وے (عليخان)

**جان باز** :- (جا+ن+با+زْ)-[فا-اِس ص-مذ-وا-ج: جانبازان- (مؤ-وا- جانبازه-ج: جانبازې)]- بهادر- ځان قربانوُونکے- مجاهد.

زهٔ په زړهٔ لکه شهباز يم
لکه پتنې په زړهٔ جانباز يم (رب نواز اورکزے)

**جانبازي** :- (جا+نْ+با+زِيْ)-[فا-اِس-مؤ] بهادري- ځوانمردي.

چې نهٔ دين وي نهٔ دنيا جنگونه څوك کا
مگر سـهـله جانبازي جان ستاني ده (خوشحال)

**جانبدار** :- (جا+ن+بْ+دا+رْ)-[فا-اِس-مذ-وا-ج: جانبداران (مؤ-وا: جانبداره-ج: جانبدارې)]- ملگرے- طرفدار- مددگار- مرستيال.

**جانبداري** :- (جا+نِ+بْ+دا+رِيْ)-[فا-اِس-مؤ]-مرسته- طرفداري- ملگرتيا.

**جانبداري کول** :- (اص- د چا طرف کول- د گوندې او پـرې جنبې پـه ډول د چا ملگرتيا کول او دبل حق ورته وهل.

**جانبـداري کېدل** :- (اص- دگونـدې او پـرې جنبې پـه ډول د چـا ملگرتيـا کېدل او حق وهلے کېدل.

**جـانبين** :- (جـا+ن+بَي+نْ)-[ع-اِس] (۱) دواړه جانـب- دواړه اړخـه- دواړه مخے (۲) دواړه فريق- د دواړو خوا خلک.

**جـان پېچـان** :- (جان+پ+ه+چـا+نْ)-[ه-اِس-مـذ]- پېژنـدگلي- واقفيـت- اشنايي.

**جان جان** :- (جا+نْ+جا+نْ)-[پ-ص]- د زياتې مينې لـه کبلـه معشـوقې تـه وئيلے شي- جيوجيو.

زهٔ احمد د زړگي سود مدام په دا کړم
چـې مئـين يمه پر تا يمه جان جان

**جانجو** :- (جا+نْ+جو)-[اَف: پ (قاموس)-ص]- (۱) سست- ناړامـه- ناراسته- جانجے. (۲) مجذوب- ليونے- دېوانه.

**جانجو کېدل** :- (اَف) اص- (۱) سستېدل- ناراسته کېدل. (۲) لېونے کېدل.

**جانجو پـانجو** :- (جانجو+پا+نْ+جو)-[پ-ص]- سست پست- بېکاره- بې ښې بې توښې.

**جانجے** :- (جا+نْ+جَے)-[اَف:پ (قاموس)-ص-مذ] و____ جانجو.

**جانجے پـانجے** :- (ظفر) اِص- جـانجے پـانجے- نـرے تـرلے- کمـزورے- بې وجهې- بېکاره.

**جانجے پانجے کېدل** :- (ظفر) اص- ډېر کمزوره کېدل- نرے نروځکے کېدل.

**جانجي** :- (جا+نْ+جِيْ)-[پ-اِس-ص-مذ-وا-ج: جانجيان-(مؤ-وا: جانجئ-ج: جانجيانې)]- جَنجي- په جنج تلے- وادهٔ ته بللے شوے.

**جانجي** :- (جا+نْ+جِيْ)-[پ (صوابي)-اِس]- چغزي.

**جانجي** :- (جا+نْ+جِيْ)-[اَف:پ (قاموس)- اس-ص]- سست- ناراست.

**جانجيتوب** :- (جا+نْ+جِيْ+تو+ب)-[پ-اِس-مذ]- (۱) سستي- ناراستي. (۲) په جنج کښې شاملېدنه.

**جانخانے** :- (جا+نْ+خا+نَے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] د بُوسو وړلو کورے يا ترنگړ چې په کچر يا اَس يا خرهٔ وړلے شي.

**جانـدار** :- (جـا+نْ+دا+رْ)-[فـا-اِس-مـذ-وا-ج: جانـداران-(مـؤ-وا: جانـداره ج: جاندارې)]- ژونـدے سړے- چې ساه لري.

**جانـدم** :- (جـا+نْ+دَ+مْ)-[اَف: پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: جاندمونـه] دوزخ- دوغش.

**جانړ** :- (جا+نْ+ړْ)-[پ(ښکي خېل)-اِس-مذ]- شُوملې- تروې- شېښې.

**جان توقرې** :- (جا+نْ+تو+قْ+رَئ)-[پ (رسو)-اس-مؤ]- هغه د جال کڅوړه شان چې ماهيان په کښې نيولے شي.

**جانکټ** :- (جا+نْ+کَ+ټْ)-[اَف: پ (قاموس)- اَنگ: جاکټ- اِس-مذ-وا-ج: جانکټونه]- جاکټ- د لستونو واسکټ.

**جان کټے** :- (جان+کَ+ټَے)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: جان کټيـان] (۱) جـان نثـار. (۲) د جبـل هغـه مـلازم چـې پـه قبـد يانو کـار کوي. (۳) د پانسـۍ د تختې راکښونکے.

**جـان نثـار** :- (جا+نْ+ن+ثـا+رْ)-[فـا-اس ص-مـذ- (مـؤ-وا: جـان نثـاره-ج: جـان نثارې)- ځان قربانوُونکے- جانباز.

**جـان نثـاري** :- (جـا+نْ+نِ+ث+رِيْ)-[فـا-اِس-مـؤ]- قربـاني- خيرخـواهي جانفشاني.

**جانگداز** :- (جان+گُ+دا+زْ)-[فا-اس ص-مذ]- ځان خوړُونکے- ځان ویلې کوُونکے.

سرۀ او سپین د دنیا دارو

د عشق گنج د جان گدازو (خوشحال)

**جان من** :- (جا+ن+مَ+نْ)-[فا-اس]- زما ځانه- زما د زړۀ سره- معشوقه.

که جفاو چاته وایم شمارئې نشته

په دا هومره ستمونو جان من ئې (خوشحال)

**جاني** :- (جا+نيْ)-[ه-ص]-(۱) د ځان- ځاني. (۲) خوږ- عزيز- گران.

سل رحمت د مهمند يو په تنبه شه

چې د ديو چار له ماسره جاني وه (خوشحال)

**جاني دوست** :- (جاني+دو+سْ+تْ)-[اس ص-مذ]- (۱) د قميص لمن. (۲) د لُوپټې، څادر يا لباس حاشيه.

**جاودان** :- (جا+و+دا+نْ)-[فا-ص-مذ]- جاوېد- همېشه- مدام- دايم- تل.

فراموش مې کړو د ستا په مينه ځان

ځـان لاڅـۀ دے بلکې عمر جاودان (رحمٰن بابا)

**جاوداني** :- (جا+و+دا+نيْ)-[فا-ص]- همېشگي- دائمي- تل ترتله.

روغ کړه محلونه په کښې کښېنوه ښې جونه

مرگ به د تربيل کا نۀ چې دا جاوداني دي (خوشحال)

**جاور** :- (جا+وَ+رْ)-[اَف: پ (قاموس)-اس-مذ]- يو قسم بوټے.

**جاؤسا** :- (جا+ؤ+سا)-[پ-اس-مؤ]- گړونج.

**جاوله** :- (جا+وْ+لَه)-[پ-اس-مؤ]-ژاوله- ژوغله.

**جاوو** :- (جا+وُوْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جاوُوگان]- يو قسم تـه ترش خوندے يا تريو بُوټے.

**جاوېد** :- (جا+وې+دْ)-[ع-اس-مذ]- و_______ جاودان.

دا جمال به د جاوېد په جهان نۀ وي

ښۀ خو دا گنه چې شکر په دا حال کړي (خوشحال)

**جاه** :- (جا+هْ)-[فا-اس-مذ-وا-ج: جاهُونه]- مرتبه- عزت- درجه- لوے والے- جلال- شان.

چې به ما ورته کاتۀ له جاهَ نۀ کړۀ

د هغو خبري اورم تېرې پېرې (خوشحال)

لکه باد هسې تېرېږي

د فـاني دنـيا جاُونه (خوشحال)

**جاهـل** :- (جـا+ه+لْ)-[ع-اس-مـذ-وا-ج: جـاهلان (مؤ-وا: جاهلـه-ج: جـاهلې)]- (۱) بې تعليمه- بې علمه- اَن پړه. (۲) ناپوهه- کم عقل

له جاهل سره جاهل په جواب رسي

ده د سپي په خرمن منع د سپي داړه (حميد)

جاهلان دي په مثال د مردگانو

عالمان دي په مثال د مسيحا (رحمان بابا)

**جاهليت** :- (جا+ه+لِيْ+يَ+تْ)-[ع-اس-مؤ]- بې علمي- ناداني- ناپوهي- کم عقل توب.

**جـاه و جـلال** :- (جـاه+وَ+جَ+لا+لْ)-[فـا-ص-مـذ]- شـان و شـوکت. رعـب داب. دبدبه.

**جائېداد** :- (جا+ئې+دا+دْ)-[فا-اس-مذ-وا-ج: جابدادونه]- (۱) ملکيت- مـال- مزکه- کور. (۲) فصل.

**جائېداد غېـر منقوله** :- (اص- هغـه جائېداد چې ديو ځـاے نـه بـل ځـاے نـه بـل ځاے ته نه شي وړے لکه زمکه- کور.

**جائېداد منقوله** :- (اص- هغه ملکيت يا مال اسباب چې د يو ځاے نه بل ځاے ته وړے شي.

**جـــائېز** :- (جـــا+ئې+زْ)-[ع-ص-مــذ-(مــؤ-وا: جـــائېزه-ج: جـــائېزې)]- (۱) درست- مناسب- صحيح. (۲) حلال. د شرعې او قانون مطابق- روا. (۳) اصلي- ثقه. (۴) مستند. (۵) د منظورۍ قابل.

**جائېز کول** :- (اص- (۱) روا کول- حلال ثابتول. (۲) د منظورې قابل گڼل.

**جـائېز کېـدل** :- (اص- (۱) روا کېـدل- حـلال گڼـل. (۲) د منظـورې قابـل گـڼلې کېدل.

**جـائېزه** :- (جـا+يې+زَه)-[فـا-اس-مؤ]-(۱) پړتـال- کتنـه- لټـون. (۲) حاضـري- شمار- گڼتې.

**جـائېزه اختسـتل** :- (اص- (۱) کتـل- پړتـال کـول. (۲) شـمار کـول- حاضـري اختستل.

**جائېفل** :- (جا+ئې+فَ+لْ)-[معرب-ه: جائېپهل- اس-مذ]- د يوې ونې مېوه.

د جائفل په ځاے به سر ورته پېشکش کړم

کـه پـه سـر مې مينه دار دے هغه کس (خوشحال)

**جِباتِے** :- (جِ+با+تِے)-[پ (ظفر)-اس-مذ-وا-ج: جباتي]- څادر.

**جَبازه** :- (جَ+با+زَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- د باران او و اورې پـه يـو ځـاے وربدل.

**جَبّـار** :- (جَ+بْ+بـا+رْ)-[ع-اس ص-مـذ]- (۱) جبـر يـا سـختي. کـوونکے- زوروَر (۲) د الله تعالي صفاتي نوم.

**جَبجبو** :- (جَ+بْ+جَ+بُوْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- يو بوټے چې د اوبو پـه جبـه کښې کېږي.

**جِبال** :- (جِ+با+لْ)-[ع-اس-مذ-ج-وا: جَبل]- غرونه.

چې د ښو سړيو قدر باندې نشته

څـکه زۀ ورځـنې گرځم په جبال (خوشحال)

**جَبـر** :- (جَ+بِ+رْ)-[ع-اس-مـذ]-(۱) زور- سـختي- ظلـم- زيـاتے- بـې رحمـي. (۲) په حساب کښې د کسر داختصار.

**جبر کول** :- (اص- زور زياتے کول- ظلم کول- بې رحمي کول.

**جبر کېدل** :- (اص-زور زياتے کېدل- ظلم کېدل.

**جبراً** :- (جَ+بْ+راً)-[ع-ص]- په زور- په زور زياتي- په ظلم- مجبوراً.

**جبرائيل** :- (جِ+بْ+را+ئيْ+لْ)-[عب-اس-مذ]- جبريل- جبرئيـل- د مسلمانانو د عقيدې مطابق په څلورو فرښتو کښې مقربه فرښته چې په پېغمبرانوؑ بـه ئـې وحي راوړه. د رسول کريم صلي الله عليـه وسلم نـه پـس د وحـي دا سلسله بنده شوې ده.

**جَبرلـوټ** :- (جَ+ب+رُ+لـو+ټْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]- کـوينځې ټوپـك- ماتوونے- ټوپك- ماتېدونکے ټوپك.

**جَبـروت** :- (جَ+بَ+رُوْ+تْ)-[ع-ص-مـذ]- عظمـت- لـوے والـے- جـلال- د الله تعالي صفت- کبريائي.

اوس چې د جبروت په صحرا راغلم

د لاهوت مرغۀ په لاس په کار د خال ځم (احمدشاه بابا)

**جَبـرے** :- (جَ+بْ+رے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]-گلـتس- هغـه تسـمې چې پتلون يا جُرابې پرې ټينگولے شي.

**جَبرۍ** :- (جَ+بْ+رۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]- لوے جُرابې چې تـر زنگـون پورې رسېږي.

**جبرئيل** :- (جِ+بْ+رَ+ئِيْ+لْ)-[عب-اِس-مذ]- و ـــــ جبرائيل.

**جَبړق** :- (جَ+بَ+ړ+قْ)-[پ(سو)-اِس-مذ]- د ماشومانو د لوبو هغه څيز چې جبه ړقوي.

**جَبل** :- (جَ+بَ+لْ)-[ع-اِس-مذ-وا]- غر- غنډی.

**جبل** :- (ج+بَ+لْ)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: جبلُونه]- د اوسپنې يوه مضبوطه ډنډه چې په غرۀ کښې پرې کانې ګټې ويستلے شي او په ګټو کښې سُورے هم پرې کولے شي. جبر

**جَبن** :- (جَ+بَ+نْ)-[پ-اِس معرفه]- جبڼ- په مالاکنډ ايجنسي کښې هغه ځاے چېرته چې د سوات د درياب نه بجلي ويستلے شي.

**جبوړے** :- (ج+بُو+ړے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-(۱) سست پست- ناراسته. (۲) بې شرم- کوز سترګې- بې غيرته.

**جَبون** :- (جَ+بُو+نْ)-[پ-اِس-مذ]-ژبون- ژبه.

پشي شا که ډېر څۀ وايم په مخ ګونګ شم
سهم جن حُسن مې بند کړي جبون هسې (عليخان)

**جبون** :- (ج+بُو+نْ)-[پ(سو)-اِس-مذ]- تربُوزك- مول- د درستار په پيڅه نيم مخ پټول.

**جَبوڼ** :- (جَ+بَ+وَ+نْ+ړْ)-[پ-اِس-مذ]- ژبه ور.

**جبه** :- (جَ+به)-[پ-اِس-مؤ-وا]- (۱) ژبه. (۲) لوظ- وعده- قول.

**جبه اَړول** :- (اِص- ژبه بدلول.

**جبه انښتل** :- (اِص- (۱) ترټرے کېدل. (۲) وارخطا کېدل. (۳) يرېدل.

**جبه بندول** :- (اِص- (۱) خبرې نۀ کول- خاموشه کېدل. (۲) په زور يا بډو رشوت څوك خاموشه كول.

**جبه بندېدل** :- (اِص- (۱) ترټرے کېدل. (۲) د ځنکدن په وخت ژبون پرېوتل. (۳) د زور رشوت يا بډو په وجه د چا خاموشه کېدل.

**جبه پولۍ کېدل** :- (اِص- د بيمارۍ له کبله په ژبه دانې راختل.

**جبه په شونډو وهل** :- (اِص- څۀ څيز ته شوق پيدا کېدل.

**جبه تېرۀ کېدل** :- (اِص- تېزې خبرې کول- سختې او قهرجنې خبرې کول- سپورې ستغې وئيل- ګستاخي او بې ادبه خبرې کول.

**جبه جبان نۀ لرل** :- (اِص- څۀ قول وعده نۀ لرل- بې اعتباره بنيادم.

**جبه چاؤدل** :- (اِص- د بيمارۍ له کبله ژبه ارې ارې کېدل.

**جبه چيچل** :- (اِص- د ماشومانو د خوراك په وخت خپله ژبه په خپلو غاښونو پرېکول.

**جبه څڅېدل** :- (اِص- د ژبې نه لاړې بهېدل- اکثر په ګرمۍ کښې د سپو او يا مجذوب حاله بنيادمو د ژبې نه اُوبۀ څاڅي.

**جبه درنېدل** :- (اِص- د ځنکدن په وخت د ژبې انښتل او د خبرو نه پرېوتل.

**جبه را ايستل** :- (اِص- (۱) ژبه بهر کول. (۲) زيات ترے کېدل. (۳) ګستاخي او بې ادبي کول. (۴) د مار د غصې په وخت ژبه ور وربښکو وهل. (۵) زيات شور کول. (۶) په چا پسې خبرې کول.

**جبه زده کول** :- (اِص- په يوه ژبه کښې د خبرې اترې کولو چل زده کول.

**جبه ښوول** :- (اِص- د مريض ډاکټر يا طبيب ته د مرض د معلومولو په لړ کښې خپلهَ ژبه ښکاره کول.

**جبه کتل** :- (اِص- د ډاکټر يا طبيب د ژبې معائنه کول.

**جبه کول** :- (اِص- (۱) لوظ کول- وعده کول. (۲) د غر د کمر يا د وريځې د ګټانو د ژبې په شان حصه راوتل.

**جبه کېدل** :- (اِص- لوظ کېدل- وعده کېدل.

**جبه ګنګوړيا کېدل** :- (اِص- د يرې، تکليف، بيمارۍ يا وارخطائي له کبله ژبه نښتل.

**جبه مړه کېدل** :- (اِص- هغه ژبه چې ويونکي يې پاتې نۀ شي.

**جبه مېخ کېدل** :- (اِص- د څاروو يو مرض چې بيا خوراك نۀ شي کولے.

**جبه وچېدل** :- (اِص- (۱) ترے کېدل. (۲) وارخطا کېدل- يرېدل. (۳) لاجوابه کېدل.

**جبه وئيل** :- (اِص- (۱) ژبه کول- په يو خاص ژبه خبرې کول. (۲) خبرې کول- ګڼېدل.

**جبه يوه کول** :- (اِص- اتفاق کول- په يوه خبره يوځاے کېدل- بيان يو کول.

**بې جبې** :- (اِص- بې ژبې- مسکين- بې خُلې بې ژبې- د ژبې څچ.

**پسته جبه** :- (اِص- نرمه ژبه- پسته ژبه- ښې خبرې.

**پوچه جبه** :- (اِص- نرمه ژبه- پسته ژبه- ښے خبرې.

**په جبه پړ پدل** :- (اِص- په لوظ پړ کېدل- په قول پوره کولو مجبورېدل.

**په جبه څټل** :- (اِص- (۱) څۀ څيز په ژبه صفا کول- څۀ څيز زيات صفا کول (۲) زياته خوشامنده کول. (۳) زياته مينه څرګندول.

**په جبه داني ختل** :- (اِص- ازار لګېدل- د چا د بد دعا اثر کېدل.

**په جبه سرور کول** :- (اِص- (۱) د خپلې ژبې دپاره قرباني کول. (۲) د قول پوره کول آخري حد ته رسېدل- لکه "پښتون په ژبه سر ورکوي"

**په جبه نيول** :- (اِص- (۱) د ژبې نه ټينګول. (۲) په وعده پوره کولو مجبورول.

**په خولۀ کښې ژبه اُوچېدل** :- (اِص- ډېر شرمېدل- د شرم له کبله وارخطا کېدل.

**خوږه ژبه** :- (اِص- ښۀ وېنا- خوږې خبرې- پستې خبرې.

**د جبې پخ** :- (اِص- و ـــــ بې جبې.

**د جبې خاوند** :- (اِص- (۱) چې ژبه لري. (۲) هغه څوك چې په يوه ژبه ئې پوره قابو وي.

**د جبې ګذار** :- (اِص)- د ژبې وار- بده وېنا- سپکې خبرې.

**جبې نه اوړېدل** :- (اِص- بې لوظه کېدل- وعده خلافي کول- قول نه پوره کول.

**د جبې نه اوېزاندېدل** :- (اِص- په ورځ د قيامت په دوزخ کښې د دروغژن سزا.

**سپکه جبه** :- (اِص- و ـــــــ پوچې جبه.

**لمده جبه** :- (اِص- اوړېدونکې ژبه- بدلېدونکې ژبه- په يوه نۀ اودرېدونکې ژبه.

**لواړه جبه** :- (اِص- سخته ژبه- هغه څوك چې خبرې ئې پستې نۀ وي.

**مورنۍ جبه** :- (اِص- مورنۍ ژبه- خپله ژبه- هغه ژبه چې په کور کښې د مور په غېږ کښې زده کېږي.

**جبه** :- (ج+بَه)-[پ-اِس-مؤ-وا-ج: جبې]- زيمناکه مزکه- هغه مزکه چې اوبۀ په کښې ولاړې وي او اکثر په کښې کبل راټوکېدلے وي.

**جبه** :- (ج+به)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]- هغه لوښے چې د جهاز تېل په کښې جمع کېږي.

**جُبّه** :- (جُ+بْ+بَه)-[ع-اِس-مؤ-وا-ج: جُبې]-چُغه- هغه پوشاك چې د جامو د پاسه اچولے شي.

**جَبه جبان** :- (جبه+جَ+با+نْ)-[پ (سو) اِس-مذ]- (۱) خبرې اترې.(۲) لوظ قول.

**جبه جبان کول** :- (اِص- لوظ قول کول.

**جبه خور** :- (ج+به+خُ+وَ+رْ)-[پ-اِس-مذ]- تاندوبه- جب جُوب مزکه- لمده خوشته مزکه.

**جبی** :- (ج+بي)-[پ-اس-مؤ]- (۱) ژبی- د ماشومانو د تالو پرېوتلو بيماري. (۲) يو ازغن بوټی چې سرۀ ګلونه کوي- او سوځولو دپاره په کار راځي.

**جبی کېدل** :- (اص- دماشومانو تالُو پرېوتل- ژبی کېدل.

**جَبين** :- (جَ+بِي+نْ)-[فا-اس-مذ-وا-ج: جبينُونه]- تندے وچولے- تندی

آب و تاب ئې عالمګير کله آفتاب شي

هر جبين چې تابنده کاندې اخلاص (حميد)

**جبين غوټې کول** :- (اص- تندے ګونځې کول- د غصې يا کرکې له کبله تندے ګونځې کول.

**د جبين غوټه خوره کول** :- (اص- د تندي ګونځې ويستل- وچولے روڼول.

معشوقه چې د جبين غوټه خوره کا

د عاشق د خاطر غوټه شي في الحال حل (عليخان)

**جَپ** :- (جَ+پْ)-[ه-اس-مذ]- وظيفه- ذکر.

هندو هم په نيمه شپې پاځي خپل جپ کا

تر هندو نه د عمل په کار لاخوار يم (خوشحال)

**جپالے** :- (ج+پا+لَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- وبا.

**جپامرګو** :- (ج+پا+مَ+رْ+ګو)-[اَف: پ (قاموس)-اس-مؤ]- د وبا بيماري- هغه بيماري چې مرګونه په کښې زيات وي.

**جپړ** :- (ج+پَ+ړْ)-[اَف:پ- (قاموس)-اس-مذ]- ناپه کار اسباب- بې ښې سامان- عب او بېکاره څيزُونه.

**جَت** :- (جَ+تْ)-[اَف:پ-(قاموس)-ه: جاټ-اس-مذ]- (۱) جټ- د يوې قبيلې نوم. (۲) ناپوهه- بې علمه.

**جَت** :- (جَ+تْ)-[پ (ګن)-اس-مذ-وا-ج: جتان]- ساروان.

**جَت بولي** :- (جَت+بو+لِيْ)-[اَف:پ (قاموس)-ص-مؤ]- بې شرمي- بې حيائي- سپکه خول

**جَت بولي کول** :- (اَف)-اص- بې شرمي کول- پُوچې ويناکول.

**جتبي** :- (ج+ت+بي)-[اَف:پ (قاموس)-ص]- يو قسم چرګ.

**جَته** :- (جَ+تَه)-[پ-ه: جتها-اس-مؤ-وا-ج: جتې]- ټولے- غونډه.

**جته جوړول** :- (اص- ټولے جوړول- راغونډېدل.

**جَتي سَتي** :- (جَ+تي+سَ+تيْ)-[ه-ص]- (۱) نا وادۀ کړے سړے- لونډ. (۲) بې پروا- چې په څۀ اړ نۀ وي. (۳) فضول خرڅ.

**جټ** :- (جَ+ټْ)-[ه-اس-مذ-وا-ج: جټان-(مؤ-وا: جټه-ج: جټاني-جټې)] (۱) جت- جاټ- ديو قوم نامه- د راجپوتو يوه څانګه چې د کرکيلے کار کوي.

چې داخل په جمع خرڅ نۀ دوي په دا کښې

هغه واړه جټ هندکي د هندوستان دي (خوشحال)

(۱) ناړامه- ناپوهه- جاهل.

زما زړۀ په ژړا سر څکه ورټ ورټ دے

هيڅ په مينه نۀ پوهېږي يار مې جټ دے (سکندرخان ختټك)

**جُټ** :- (جُ+ټْ)-[ه-اس-مذ]- ملګرے.

**جټاتر** :- (جَ+ټا+تَ+رْ)-پ (ګن)-اس]- هغه علاقه چې جټ قوم په کښې اوسي.

**جټپول** :- (جَ+ټ+پو+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- د ښځو مکر او فريب.

**جټپول کول** :- (اَف) اص- د ښځو مکر فريب کول.

**جټتوب** :- (جَ+ټ+تو+بْ)-[پ: ص]- ناپوهي- بې علمي.

**جټکانه** :- (جَ+ټْ+کا+نَه)-[پ (ظفر)-ص-مؤ] (۱) معمولي- اسمان. (۲) بې قاعدې.

**جَټ ګول** :- (جَ+ټْ+ګُو+لْ)-[پ (سو)-اس]- په سوات کښې د چکېسر سره نژدې هغه وړوکے کلے چې اباسين او د چکېسر خوړ يوځاے کېږي.

**جُثه** :- (جُ+ثَه)-[ع-اس-مؤ-وا-ج: جُثې]- څېره- شکل- بدن.

چې تر ډېره ئې ويسا په جُثه نۀ کا

بېلتانۀ دے ويرولې زما ورح (عليخان)

**جُثه بدلېدل** :- (اص- رنګ اوړېدل- شکل بدلېدل.

**جَج** :- (جَ+جْ)-[اَف: پ (قاموس)-اس-مذ-ج: ججونه]- د زنې کُوتې يا کوغالے.

**جَج** :- (جَ+جْ)-[انګ-اس-مذ-وا-ج: ججان]- منصف.

**ججتوب** :- (جَج+تو+بْ)-[پ-اس-مذ]- ججي- منصفي.

**ججوره** :- (جَ+جُو+رَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: ججورې]- (۱) د مرغانو معده- پوټه. (۲) پړسېدلے مرغے. (۳) د ټوپك مېګزين- ججورے

**ججورے** :- (جَ+جُو+رَے)-[پ-اس-مذ-وا-ج: ججوري] و ــــ ججوره.

**ججوي** :- (ج+جوے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- رېدي ګل- د لاله ګل.

**ججه** :- (ج+جَه)-[اَف: پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: ججې]- قلنګ- جزيه.

**ججه اخستل** :- (اَف)-اص- قلنګ اخستل- جزيه اخستل.

**ججي** :- (جَ+جيْ)-[پ-اس-مؤ] و ــــــ ججتوب.

**ججے** :- (ج+جَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- ججي- يومارغۀ- قره قل.

**جَحيم** :- (جَ+حي+مْ)-[ع-اس-مذ]- دوزخ.

نۀ بهشت و ته هوس کړم

نۀ په ويره د جحيم يم (خوشحال)

**جُخ** :- (جُ+خْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- (۱) د اوبو مچ. (۲) څګ. (۳) برېوکی- خوږښي.

**جُخت** :- (جُ+خْ+تْ)-[پ-ص-مذ-(مؤ-وا: جُخته-ج-جُختې)]- (۱) نژدې- پېوست. (۲) سلامت.

زما روغ سندان له کته پرېوزي مات شي

دبل ها له ونې پرېوزي روغه جُخته (عليخان)

**جُخت کول** :- (اص- (۱) نژدې کول- جختول- پېوستول- يوځاے کول.

**جُخت کېدل** :- (اص- جُختېدل- نژدې کېدل- پېوست کېدل- يوځاے کېدل.

**جُختوالي** :- (جخت+وا+لَے)-[پ-اس-مذ]- نژدې والے- نزديکت- پېوستېدنه.

**جُختول** :- (جُ+خْ+ت+و+لْ)-[پ-مص مت]-جُخت کول- نژدې کول- پېوست کول- يو ځاے کول.

**جُختونه** :-(جُ+خْ+ت+و+نه)-[پ-حمص]-نژدې کونه- پېوست کونه- يوځاے کونه.

**جُختوونکے** :- (جُ+خ+ت+وُو+نْ+کَے)-[پ-فاع-مذ-وا-ج: جُختوونکي (مؤ: جختوونکې)]- نژدې کوونکے- پېوست کوونکے- يوځاے کوونکے.

**جخته** :- (ج+خَ+ته)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: جختې]- يو غرئيز بوټی چې پاڼې ئې ازغنې وي او جرړې ئې خوږې وي- ماشومان ئې خوري.

**جُختېدل** :- (جُ+خْ+تې+د+لْ)-[پ-مص لا]- جُخت کېدل- پېوست کېدل- نژدې کېدل- يوځاے کېدل.

**جُختېدنه** :-(جُ+خْ+تې+د-نه)-[پ-حمص]- جُختېدۀ- پېوست کېدنه- نژدې کېدنه.

**جُختېدُونکے** :- (جُ+خ+تې+دُو+نْ+کَے)-[پ-فاع-مذ-وا-ج:جُختېدونکے- (مؤ: جُختېدونکې)]- نژدې کېدونکے- پېوست کېدونکے- يوځاے کېدونکے.

**جُختېدۀ** :- (جُ+خْ+تې+دۀ)-[پ-حمص]- و ــــ جُختېدنه.

**جَد** :- (جَ+دْ)-[ع-اِس-مذ]- نیکۀ- د پلار یا د مور پلار.

**جُدا** :- (جُ+دا)-[فا-اِس]- بېل- ګوښې- یواځې- یؤطرف ته.

چې جدا د یار له دره په کښې ګرځم
هائې توبه له تا وطنه که بهشت ئې (حمید)

**جدا جدا** :- (اِص- بېل بېل- ګوښې ګوښې- ځان ځان ته- یو یو.

ښائسته په شپږ جهته
هر اندام جُدا جدا ښۀ (خوشحال)

**جداسترګې** :- (اِص- بل شان سترګې- بل رنګ چشمان.

سترګې خو یو سترګې همه سترګې وي
سـترګې د اشـنا مې جدا سترګې دي (حمزه شنواري)

**جداکول** :- (اِص- بېلول- ګوښې کول- یو طرف ته کول.

**جداکېدل** :- (اِص- بېلېدل- ګوښې کېدل- یو طرف ته کېدل.

ګمان مه کړه چې به سترګو لره ورشي
هغه اوښکې چې له سترګو شي جدا (رحمان بابا)

**جدال** :- (جِ+دا+لْ)-[ع-اِس-مذ]- جنګ- جګړه- دښمني.

چې په نیمه خولۀ ئې کار کېږي د خلقو
د خـلاصـي مـې همېشه کوي جدال (خوشحال)

**جُداګانه** :- (جُدا+ګا+نه)-[فا-ص]- ګوښې- ځان ته- یوطرف ته- بېل.

**جُدائي** :- (جُ+دا+ئيْ)-[فا-اِس-مؤ]- بېلتون- ګوښې والے.

لکه اور په بوټي ولګي بیا نۀ وي
یو څو ورځې وي ارمان د جدائي (خوشحال)

**جدّت** :- (جِ+دْ+دَ+تْ)-[ع-اِس-مذ]- (۱) نوے والے. (۲) ځان ته خپله لار.

**جَدر** :- (جَ+دَ+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- بُنیاد- جرړه- رېښه- رده- اَره.

**جَدل** :- (جَ+دَ+ل)-[ع-اِس-مذ]- جنګ- جګړه.

تۀ په سود دنیا مېنې مبدل کړې
فکر نۀ رسي هورې پسې جدل کړې (خوشحال)

**جدل کول** :- (اِص- جنګ کول- جګړه کول.

**جدّو جهد** :- (جِ+دْ+دو+جُ+هْ+دْ)-[ع-اِس-مذ]- کوشش- محنت- خواري.

**جدور** :- (ج+دُ+و+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- مبده مالګه چې د ماشومانو ژبې پرې پورته کوي.

**جَدول** :- (جَ+دْ+وَ+لْ)-[ع-اِس-مذ-وا-ج: جدلوُنه]- (۱) حاشیه د کتاب د پاڼې نه ګېر چاپېر راکښلې کرښې. (۲) فهرست- فرد.

**جَدون** :- (جَ+دُو+نْ)-[اِپ-اِس معرف]- د پښتنو د یوې قبیلې نوم چې په ځینې علاقو کښې ورته ګدون وائي.

**جِدّه** :- (جِ+دْ+دَه)-[ع-اِس معرفه- مؤ]- د سعودي عرب یو مشهور بندر.

**جدي** :- (جَ+دِيْ)-[اِپ-اِس]- نیکانے- د نیکۀ د طرف نه.

**جَدي** :- (جَ+دِيْ)-[ع-اِس معرف]- (۱) یو اسمان برج.

لیندہ ورغومے څۀ دي لادا و اوره درته وایم
یو قوس دوېم جدي دواړه دادي آذر دے (خوشحال)

(۲) د جغرافیې په علم کښې یوه فرضي کرښه چې د استوائي کرښې نه درویشت نیمې درجې سویل طرف ته متوازي تېرېږي.

**جَدیـد** :- (جَ+دِي+دْ)-[ع-ص-مـذ]- (۱) تـازه- اوسـنے. (۲) د دې وخـت- د دې زمانې.

**جدید تهذیب** :- (اِص- نوے تهذیب- د دې زمانې د استوګنې او دود دستور طریقه.

**جُذام** :- (جُ+ذا+مْ)-[ع-اِس-مذ]- پم- پمن توب- یو مرض چې د وینې د خرابۍ د کبله پیدا کېږي.

**جُذامي** :- (جُ+ذا+مِيْ)-[فا-اِس]-پمن- د جذام رنځور.

**جذب** :- (جَ+ذْ+بْ)-[ع-اِس-مذ]- (۱) راکښته- کشش. جُوپنه- په ځان کښې ځایونه.

چې و زړۀ ته را نژدې شي بیا چې جذب شي
که مستي ده که رندي ده خو و زړۀ ته محبوبا ده

(۲) جوش- هغه د بیخودي کیفیت چې اهل الله فقیرانو باندې راځي.

پام کوه اے جذبه زما سوږ نۀ شي
دا یو اسوېلے مې له تا پور اوغوښت (حمزه شنواري)

**جذب کول** :- (اِص- راکښل- چوپل.

**جذبات** :- (جَ+ذْ+با+تْ)-[ع-اِس-ج]- د زړۀ او د ذهن د جوش کېفیت.

ما تۀ د جذباتو سمندر کښې لمبولے ئې
ما تۀ د زمان مکان نه بهر ته لوبولے ئې (اشرف مفتون)

**جذباتي** :- (جَ+ذ+با+تِيْ)-[فا-اِس ص]- جوشي- هغه ځوک چې زر په څۀ خبره په جوش کښې راځي.

**جذباتي کېدل** :- (اِص- په بحث یا خبرو کښې ډېره زیاته د جوش مظاهره کول.

**جذبه** :- (جَ+ذْ+بَه)-[ع-اِس-مؤ-وا-ج: جذبې]- جوش- خواهش- مینه- شوق.

په جذبه د عاشقۍ به لېونے شي
که په قطع افلاطون غوندې هوښیار وي (رحمان بابا)

ستا د خوږې مینې په غېږ کښې آشنا
د زړۀ جـذبـې زمـا اُودې پـرتې دي (مطیع الله قریشي)

**جذبه کښې راتلل** :- (اِص- په جوش کښې راتلل- غصه کېدل- قهر اخستل.

**جَـذر** :- (جَ+ذْ+رْ)-[ع-اِس-مـذ]- (۱) اصـل- جـرړه- رېښـه. (۲) د حسـاب یـوه قاعده چې په کښې یو عدد ته هم په هغه عدد کښې ضرب ورکړے شي.

**جَـر** :- (جَ+رْ)-[اِپ-اِس-مـذ]- (۱) هغـه لښـتـے چې د مزکې ګېرچاپېر د زیـاتي اوبـو ویسـتلو دپاره کنسـتلے شـوے وي. (۲) د خر اواز. (۳) ضـدي. (۴) د منډې په مقابله کښې یو مقرر ځاے ته رسېدل او لاس لګول.

چې د ترکو د جمال په جرګو کښېوزي
افـلاطـون زمـا د عقـل کاندې جر (حمید)

(۵) ګډوډ. (۶) پړشوے.

**جر کښل** :- (اِص- لښتے ایستل- لښتے جوړول.

**جر کول** :- (اِص- (۱) د خر اواز ایستل. (۲) پړول.

**جر کېدل** :- (اِص- (۱) د خر اواز کېدل. (۲) پړ کېدل.

**جُرابـه** :- (جُ+را+بَـه)-[فـا-اِس-مـؤ-وا-ج: جرابې]- مـوزه- د وړو یـا سپنسـو نـه جوړه هغه بخځه شان چې د پېزار سره پښو ته اچولے شي- مسې.

**جرابې اچول** :- (اِص- جرابې په پښو کول.

**جُـرأت** :- (جُ+رْ+أ+تْ)-[ع-اِس-مـؤ-وا]- (۱) زړۀ ورتیـا- بهـادري- مړنتـوب- توره.

دربغه اشرف خان دست یاري هومره قوت
درست اُولس په لاس کښې هیڅ در ونۀ شو جرأت (خوشحال)

(۲) بې باکي.

**جرات کول** :- (اِص- (۱) مړانه څرګندول- تُوره کول. (۲) بې باکي ښکاره کول.

**جراثیم** :- (جَ+را+ثي+مْ)-[ع-اِس-مذ]- نرې نرې واړۀ واړۀ چینجي چې په هر ژوندي سري کښې وي او اکثر مرضونه هم دا جراثیم خوروي- او بغیر د

خوردبين نه نۀ ښکاري.

**جَراح** :- (جَ+را+حْ)-[ع-اس-مذ-وا-ج: جراحان]- سرجن- د زخمونو او پرهرونو علاج کوونکے- ځيزونکے- د علاج دپاره وينه ويستونکے.

د عاشق له رګه وبهيوي وينې
چې جراح د معشوقې وهي قفال (خوشحال)

**جَراحت** :- (جَ+را+حَ+تْ)-[ع-اس-مؤ]- (۱) زخم- پرهر. (۲) جراحي- د پرهر زخم- د ځيرلو کار- سرجري- د زخمونو د علاج کار.

**جراحي** :- (جَ+را+حيْ)-[ع-اس-مؤ]- و______ جراحت.

**جراسک** :- (ج+را+سَ+کْ)-[اَف:پ (قاموس) اس-مذ]- کرړے- يو قسم چينجے.

**جرايل** :- (ج+را+ي+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- غربين- د زړې زمانې يو قسم ټوپک.

**جربين** :- (ج+ر+بيْ+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- يو قسم ګل.

**جرپے** :- (جَ+رْ+پَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-مؤ: جرپۍ]- بکواسي- جرپن- پوچ خولے.

**جَرجر** :- (جَ+رْ+جَ+رْ)-[پ-اس-مذ]- دخرۀ د شوق رالړزولو دپاره دا ټکے وئيلے شي- هرهر.

**جَرجر کول** :- (اص- خرۀ ته د جرجو اواز کول- هرهر کول.

**جُرجُوړ** :- (جَ+رْ+جُو+ړْ)-[پ (ظفر)-اس-مذ]- ورکوټے ابشار- ووړزاوه جرجُوړے.

**جَرجُوړے** :- (جَ+رْ+جُوْ+ړَے)-[پ-اس-مذ]- و______ جُرجوړ.

**جَرح** :- (جَ+رَ+حْ)-[ع-اس-مؤ]- بحث.

**جَرح کول** :- (اص- بحث کول.

**جرړه** :- (ج+رْ+ړه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جرړې]- بېخ- ريښه- بنياد- ولې- وبخ.

**جرړه ايستل** :- (اص- (۱) بنياد ايستل- بېخ ايستل. (۲) تباه کول.

**جرړه کول** :- (اص- (۱) ولې کول- په مزکه کښې دننه د بوټي جرړې کول (۲) بنياد مضبوطېدل.

**جرړۍ** :- (ج+ر+ړۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- يو قسم خړ رنګلے چرچڼه.

**جَرس** :- (جَ+رَ+سْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) ګُونګرو- ټلې- ژغژغه- ګنټي.

بـــــارتړه خوشـــــحال
د جــــرس اورې فغـــــان

(۲) د پښتنو يو عام نوم. (۳) د مروتو د کسرونو جوړولو يو شاعر چې عامو خلقو به ورته جرسي وئيل.

**جَرس په غاړه پوري کول** :- (اص- (۱) غاړې ته ګنټي يا ژغژغه ور اچول. (۲) تياري کول.

ل هردي کاروانونه صبا کېږي اے ساربانه
پاڅه د شتر په غاړه پورې اوس جرس کړه (خوشحال)

**د جرس فرياد کول** :- (اص- ګنټي ژغېدل- ټلې ټنګېدل.

نقيب دعمر هر لور نارې کړي
غافـــله پـــاڅه فرياد جرس، کا (احمدشاه ابدالي)

**جُرعه** :- (جُ+رْ+عَه)-[ع-اس-مؤ]- ګوټ- غړپ.

زۀ مرده وم ستا د جام په ګوټ ژوندے شوم
چــې ئــې داجُــرعه لــوشلے غه په چا مري (خوشحال)

**جُرعه نوش** :- (جُرعه+نو+شْ)-[فاتر-اس-مذ]- ګوټ کوُونکے.

ساقي زۀ د جرعه نوشو غوندې نۀ يم
ډکې ډکې پيالې راکړه زما وار دے (خوشحال)

**جرغاتکه** :- (جَ+ر+غا+تَ+که) [مؤ-وا-ج: جرغاتکې]- د يو مرغۍ نوم.

**جرکاڼے** :- (جَ+رْ+کا+ڼْ+ړے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جرکاڼي]- چُونګړے- جونګړے- په سودا کښې سپوائي ګټه.

**جرکېدل** :- (جَ+رْ+کې+دَ+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص لا]- منجوڼ پاکېدل. څۀ تارونه وغېره په يو بل کښې نښتل- جاخه کېدل.

**جَرګاوُو** :- (جَ+رْ+ګا+وُوْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- هغه څوک چې په قامي معاملو ښۀ پوهېږي. د جرګې په چل پوهه کس.

**جَرګټو** :- (جَ+رْ+ګَ+ټوْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جرګټوګان] د جرګې مشر.

**جرګه** :- (ج+رْ+ګه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج:جرګې]- (۱) غونډه- ټولے- قامي مجلس. (۲) ننواتې.

پـــه کالونو به جدا ځنې صنم شي
په جرګه به د رشتونو هسې ګرم شي (حميد)

**جرګه پاڅول** :- (اص- (۱) د جرګې غونډه ختمول. (۲) د جرګې فېصلې ته غاړه نۀ کښېښودل.

**جرګه پنډېدل** :- (اص- جرګه راټولېدل.

زۀ رحمن د هغه حسن ثنا خوان يم
چې جرګه د عاشقانو پرې وي پنډه (رحمان بابا)

**جرګه رابلل** :- (اص- غونډه را غوښتل د څۀ خبرې د فيصلې دپاره مشران را يوځاے کول.

**جرګه راټولېدل** :- (اص- د څۀ فيصلې دپاره مشران را يوځاے کېدل- جرګه غونډېدل- جرګه کښېناستل.

**جرګه شرمول** :- (اص- (۱) د جرګې په وړاندې بې ادبه او فضوله خبره کول. (۲) د جرګې فيصله نۀ منل.

**جرګه غونډېدل** :- (اص- و______ جرګه راټولېدل.

**جرګه کښېناستل** :- (اص- يوځاے غونډه کېدل- د څۀ معاملې د فيصله کولو دپاره د مشرانو يوځاے کېدل- جرګه غونډېدل- جرګه راټولېدل.

**جرګــه کــول** :- (اص- (۱) غونــډه کــول- مشــوره کــول- مصــلحت کــول. (۲) په ننواتے تلل.

**جرګه کېدل** :- (اص- (۱) غونډه کېدل- مشوره کېدل. (۲) په ننواتے ورتللے کېدل.

**جرګه منل** :- (اص- د چا ننواتے قبلول- د جرګې فېصلې ته غاړه کښېښودل.

**د جرګې سره تلل** :- (اص- د مشرانو سره د مرور پخلا کولو دپاره د هغۀ کور ته ورتلل.

د خپلو اوښکو اسويلو سره ځم
کنبلي اشنا ته د جرګو سره ځم (حمزه شنواري)

**لويه جرګه** :- (اَف) اص- د افغنستان ملي جرګه چې د ټولو سيمو مشران په کښې شامل وي.

**جرلګ** :- (ج+ر+لْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جرلګان]- يو خړ رنګے ازغے چې په قندهار کښې زيات کېږي او ډېر سخت وي د غنمو په غوبل کښې د پولې په ځاے استعمالېږي.

**جُرم** :- (جُ+رْ+مْ)-[ع-اس-مذ-وا-ج: جرمونه]- (۱) غلطي- خطايي.

چېرته جـرم چې چغار وي د بلبلو
داسې باغ ته سپېرهٔ باد و خزان پرېږده (طاهر کلاچوي)

(۲) جرمانه- ناغه.

**جُرم اخستل** :- (اص- جرمانه اخستل- د چانه ناغه وصولول- جرم وصولول.

**جُـرم تپـل** :- (اص- پـه چا هېـڅ بې هېڅـه الزام لګول- بغېـر د څهٔ وجې څوک بدنامول.

**جرم ثابتول** :- (اص- په چا څهٔ جرم زبادول- د چا خلاف د جرم ثبوت پېش کول.

**جرم کول** :- (اص- (۱) غلطي کول- خطائي کول. (۲) جرمانه کول.

**جرم کېدل** :- (۱) جرمانه کېدل. (۲) څهٔ قصو يا خطائي کېدل.

**جـرم منـل** :- (اص- (۱) د خپـل جرم پـه خپلـه اقبـال کـول- اقبـالي کېـدل. داده کېدل. (۲) جرمانه قبلول- جرمانې ته غاړه کښېښودل.

**جرم ورکول** :- (اص- جرمانه ورکول.

**جرم وصولول** :- (اص- و ــــــــ جرم اخستل.

**د جرم اقبال کول** :- (اص- خپل قصور منل- خپله خطائي تسليمول.

چې ما ظاهر اقبال د جرم اوکړو
ستا رحمتونو ماته خوا راکړه

**جرمانه** :- (جُ+رْ+ما+نَه)-[فا-اس-مؤ-وا-ج: جرمانې]- تاوان- ناغه- مالي سزا.
يادګيرنه: د جرمانې ټکي مرکبات د جرم د مرکباتو په شان استعمالولے شي.

**جُرم کار** :- (جُرم+کا+رْ)-[فا-اس-مذ]- خطا کار- جُرم کوونکے- ګناهګار.

بس خو جُرم کار دے د حمزه زبان
خير دے که هم دا نورې دنيا ووې

**جَرمن** :- (جَ+رْ+م+نْ)-[اس-مذ]- (۱) د جرمني اوسېدونکے- د جرمني قام سره تعلق لرونکے. (۲) د جرمني ژبه.

**جرمني** :- (جَ+رْ+مَ+نيْ)-[اس-مؤ]- د جرمنيانو ملك.

**جَرموړه** :- (جَ+رْ+مو+ړه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: جرموړې]- بروړه- غنداړے- لړے.

**جَرمه** :- (جَ+رْ+مَه)-[اپ-اس معرفه- مؤ]- د کوهاټ سره نزدې د بنو په لور د سړك په غاړه يوځاے.

**جرنده** :- (ج+رَ+نْ+ده)-[ټنګټنګے- ژغژغے- جرس- ټنګوونے- جرنګنے

ککرې د اسمان لـــــه جوره دل شوه
چې مُدام را باندې ګرځي لکه جرنده (عليخان)

**جرنده چلول** :- (اص- ژرنده چلول- په ژرنده غله اُوړهٔ کول.

**جرنده کول** :- (اص- په ژرنده غله اُوړهٔ کول.

**جرنده ګرے** :- (جرنده+ګ+رَے)-[اپ-اِس ص-مذ-وا-ج: جرنده ګري]- ژرنده ګرے.

**جرنـدے** :- (جْ+رَ+نْ+دَ+ے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: جرنـدي]- (۱) د ژرنـدے غوږے- هغه لرګے يا غبشے چې د ژرندې رفتـار پرې کمـوي يـا زياتوي. (۲) د دروازې اړبکه.

**جرنګ** :- (ج+رَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- د شرنګ اواز- شرنګ.

**جرنګـانے** :- (ج+رَ+نْ+ګـا+نَے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: جرنګـاني]- ټنګټنګے- ژغژغے- جرس- ټنګوُنے- جرنګنے.

**جرنګاوُو** :- (جْ+رَ+نْ+ګا+وُوْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- شرنګاوُو.

**جرنګنـے** :- (جْ+رَ+نْ+ګ+نَـے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: جرنګنـي]- و ــــــ جرنګانے.

**جرنګول** :- (جَ+ر+نْ+ګ+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت] شرنګول- شرنګول.

**جرنګېــدل** :- (جْ+ر+نْ+ګـې+د+لْ)-[اَف:پ (قـاموس) مــص لا]- شــرنګېدل شرنګېدل.

**جَرنل** :- (جَ+رْ+نَ+لْ)-[اَنګ-اس-مذ]- رساله.

**جرنلسـټ** :- (جَ+رْ+نَ+لِ+سْ+ټْ)-[اَنګ-اس-مـذ]- اخبـارنويس- اخبـار کښـې کارکوُونکے.

**جَرنېـل** :- (جَ+رْ+نـې+لْ)-[اپ-اَنګ:جرنـل-اس-مـذ-وا-ج: جـرنېلان (مـؤ-وا- جرنېلـه-ج: جرنېلـې)]- (۱) د فـوځ لـوے افسـر. (۲) مشـروټ- مغـرور. (۳) لَرے- د ځناورو معده.

**جَرنېلتوب** :- (جَرنېل+تو+بْ)-[اپ:اس-مذ]- جرنېلي.

**جَرنېلي** :- (جَ+رَ+نې+لـيْ)-[اپ-اس-مـذ]- (۱) جرنېـل تـوب- د جرنېـل عهـده (۲) مشروټي- مغرورتيا.

**جرنېلي سړک** :- (جرنېلي+س+رَ+ك)-[اپ-اس مر-مذ]- پوخ سړك- شاهراه.

**جَـره** :- (جَ+رَه)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: جره ګان]- څړه- ناوادهٔ کـړے- هغـه څوك چې وادهٔ ئې نهٔ وي کړے- لونړ.

**جره کېدل** :- (اص- څړه کېدل- لونړېدل.

**جُره** :- (جُ+رَه)-[اپ (ظفر)-اِس- مذ-وا-ج: جُرګان]- يو ښکاري مارغهٔ.

**جَره توب** :- (جَره+تو+بْ)-[اپ-اس-مذ]- جره والے- څړه والے- لونړتوب.

**جَره والے** :- (جَره+وا+لَے)-[اپ-اس-مذ- و ــــــ جَره توب.

**جِريان** :- (ج+رْ+يا+نْ)-[ع-اِس-مذ]- (۱) رواني- بهېدنـه. (۲) يـو مـرض چې د سړي مني بې وسه په کښې بهېږي.

**جَريب** :- (جَ+ري+بْ)-[يو-اِس-مذ-وا-ج: جريبونه]- (۱) د پيمـائش يـوه پيمانـه. (۲) څلور کناله مزکه.

په دوستۍ کښې نزديکت د زړهٔ اخلاص دے
تـفـاوت پـه کښې د کـروه د جريب نشته (عليخان)

**جَريب کش** :- (جريب+كَ+شْ)-[فاتر-اس-مذ]- هغـه څوك چې د مزکې ناپ کولو دپاره جريب را کاږي- مزکه ناپ کوونکے.

**جَريده** :- (جَ+ري+دَه)-[ع-اس-مؤ]- اخبار.

**جريز** :- (جَ+ري+زَ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- شيره- اتوب- ګروبې.

**جَړ** :- (جَ+ړ+-[اه-اس-مذ-وا-ج: جړونه]- (۱) جړه- رېشه- جړه- بېخ.

نيت د هر تېغي تر سما و بره
بې خطر تګ د جړ په زور ختو (سمندر بدرشوي)

(۲) تاؤ را تاؤ- منجيله. (۳) زهر.

**جَـړ ايستل** :- (اص- جـړې ايسـتل- بـېخ ويسـتل- بنيـاد ويسـتل- بېخـې بربادول- مونډ ويستل.

**جړکول** :- (تاؤ را تاؤکول- منجيله کول. (۲) جړې کول- ولې کول.

**جړورکول** :- (اص- زهرورکول.

**جړکول** :- (اص- ولې کول.

**جړا** :- (ج+ړا)-[اپ-اس-مذ]- ژړا.

**جړامبو** :- (ج+ړا+م+بو)-[اَف:پ (قاموس)-ص]- سست پست.

**جړامبو کېدل** :- (اَف) اَص- سست پست کېدل.

**جړاند** :- (ج+ړا+نْ+دْ)-[اپ-ص-مذ]-ژړاند.

**جړانګو** :- (ج+ړا+نْ+ګوْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- د يـوې وُنـې نـوم يـو بُـوټے چې دستونه رابيائي.

**جړاؤ** :- (جَ+ړا+ؤ)-[اِپ-ص]- چې په کښې غمې، سُوچې کاڼي يا جواهرات لګېدلي وي.

**جړاؤکول** :- (اص- جړاوول- په غمو او جواهراتو ښکلے کول.

**جړاؤکېدل** :- (اص- جړاوېدل- په غمو او جواهرتو ښکلے کېدل.

**جړاوول** :- (ج+ړا+و+و+لْ)-[اِپ-مص مت]- و______ جړاؤکول.

**جړاوونه** :- (ج+ړا+و+و+نه)-[اِپ-حمص]- په غمو او جواهراتو ښکلے کونه.

**جړاووُونکے** :- (ج+ړا+و+وُ+نْ+کَے)-[اِپ-فـاع-مـذ-وا-ج: جړاووُونکي (مـؤ: جړاووُونکې)]- په غمو او جواهراتو ښکلے کوُونکے.

**جړاوه** :- (ج+ړا+وَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]- يو قسم کالے چې په غمو او جواهرتو ښکلے کړے شوے وي.

**جړاوېدل** :- (ج+ړا+وې+د+لْ)-[اِپ-مص لا]- و______ جړاؤکېدل.

**جړاوېدنـه** :- (ج+ړا+وې+د+نـه)-[اِپ-حمص]- جړاوېـدۀ- پـه غمـو او جواهراتـو ښکلے کېدنه.

**جړاوېدُونکے** :- (ج+ړا+وې+دُو+نْ+کَے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: جړاوېدُونکي-(مؤ: جړاوېدُونکې)]- په غمو او جواهراتو ښکلے کېدونکے.

**جړاوېدۀ** :- (ج+ړا+وې+دۀ)-[اِپ-حمص]- و______ جړاوېدنه.

**جړبړ** :- (جَ+ړ+بَ+ړْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- جُلاب.

**جړبړکول** :- (اَف) اص- جلاب کول.

**جَړپـړ** :- (جَ+ړ+پَ+ړْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-(مـؤ-وا: جَـړه پـړه-ج: جړې پړې)]- په يوبل کښې ننښتے نتوتے.

**جړپن** :- (ج+ړ+پَ+نْ)-[اِپ-ب-خ: اس ص-مذ-(وا: جړپنه-ج: جړپنې)]- جـړپے-فضول رغبدُونکے- جړپېدُونکے- ډټن- بکواسي- کاواک- ډړتن

**جړپول** :- (ج+ړ+پ+و+لْ)-[اِپ(ب،خ)-مص مت]- فضول رغول- ډټول.

**جړپونه** :- (ج+ړ+پ+و+نه)-[اِپ (ب،خ) حمص]- ډټونه- په چا فضول خبرې کونه.

**جړپووُنکــــے** :- (ج+ړ+پ+وُ+نْ+کَــے)-[اِپ (ب،خ)-اس-فــاع-مـــذ-وا-ج: جړپووُنکي]- ډټوونکے- په چا فضول خبرې کوونکے.

**جړپېدل** :- (ج+ړ+پې+د+لْ)-[اِپ (ب،خ)مص لا]-فضول رغېدل- ډټېدل.

**جړپېدنه** :- (ج+ړ+پې+د+نه)-[اِپ (ب،خ)-حمص]- فضول رغېدنه- ډټېدنه.

**جړپېـــدُونکے** :- (ج+ړ+پـــې+دُو+نْ+کَے)-[اِپ (ب،خ)-اِس فـــاع-مـــذ-وا-ج: جړپېدُونکي]- فضول رغېدُونکے- ډټېدُونکے.

**جَړجَـړ** :- (جَ+ړْ+جَ+ړْ)-[اِپ-اِس-مؤ-مذ]- جړجړ- د اُوبـو را غورزېدلو اواز- جُرجړ.

**جَړجَړکول** :- (اص- دأُوبو د غورزېدو اوازکول- جُرجړکول.

**جَړجَړکېدل** :- (اص- د اُوبو غورزېدو اواز کېدل- جُرجړکېدل.

**جُرجُړ** :- (جُ+رْ+جُ+ړْ)-[اِپ-اِس صو-مذ]- و______ جَړجړ.

**جُرجُړکول** :- (اص- و__________ جَړجړکول.

**جُرجُړکېدل** :- (اص- و__________ جړجړکېدل.

**جرجړ** :- (ج+ر+ج+ړ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-عبث- فضول- بيهوده.

**جُرجړې** :- (جُ+رْ+جُ+ړې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس- صو-مؤ]-و___ جَرجړ.

**جړل** :- (ج+ړ+لْ)-[اِپ-مص-مت]- ژړل.

**جړمړي** :- (جَ+ړْ+م+ړي)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]- زهرمُهره.

**جَړموړه** :- (جَ+ړْ+مو+ړَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]- لړمے- هغه مرض چې په بدن سرې سرې دانې شان راوځېژي او خاربنت کوي.

**جړنګ** :- (ج+ړ+نْ+ګْ)-[اِپ (ظفر)اِس-مذ]- يو بُوټے چې د ختکي د بوټي په شان ئې زېلې په مزکه خورېږي.

**جړنګاوو** :- (جَ+ړ+ن+ګا+وُوْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- جړګاك- شرنګاوُو- شړنګهارکوُونکے- شړنګ شرُونګ کوُونکے.

**جړنګهار** :- (ج+ړ+ن+ګ+ها+رْ)-[اِپ-اِس صو-مذ]- شرنګهار- شرنګا.

**جړنګے** :- (جْ+ړ+ن+ګَے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- شرنګے- شړنګېدُونکے.

**جړوبے** :- (ج+ړو+بے)-[اِپ-اِس-مذ]-زاوۀ- ابشار- ګرونګه- برېـرك- جـرړوبے- جرړابے.

**جَړه** :- (جَ+ړَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: جړه ګان]- د ګُلاب ګل.

**جَړه ايستل** :- (اص (۱)جړره ايستل- موندِ ويستل- بيخ ويستل. (۲) تباه کول.

**جړه ختل** :- (اص- (۱) بيخ وتل. (۲) تباه کېدل.

**جړه زرغونېدل** :- (اص- د څۀ بوټي بيخ راشين کېدل.

**جړې کول** :- (اص- (۱) مضبوطېدل. (۲) ولې کول.

**جَړې** :- (جَ+ړې)-[اِپ-اِس-مؤ]- (۱) په يو مخ باران.

سېلاب د اوښکو د طوفان وۀ

کـه د جـړې او د بـاران وۀ (نظيردراني)

(۲) زهر مُهره.

د زلفينو ښاماران ئې هسې نۀ دي

چې خوړلي ئې رغ ېږي په جړې (خوشحال)

(۳) قے- اُلټي- باکې- کوُزکتنه.

**جړې پرسُوري کېدل** :- (سو) اِص- قے دست لګېدل- خولۀ په نس تلل.

**جړې پرسُوري کول** :- (ظفر)-اِس- قے کول- کوُزکتل- باکې کول- خولـۀ پـه نـس تلل- قے دست لګېدل- جړې پرسُورے کېدل-(سو).

**جړې پرسُوري لګېدل** :- (اص- باران په يو مخ ورېدل.

**جړي** :- (جَ+ړي)-[اَف:پ (قاموس)اِس-مؤ]- (۱) د سپي غپا- جړے. (۲) پـه يـو مخ اواز.

**جړي وهل** :- (اَف) اص- (۱) د سپي په چا حمله کول. (۲) په يو مخ اواز کول- جړے وهل.

**جَړي** :- (جَ+ړَ+ي)-[اِپ (ظفر)-اِس-مؤ]- و______ جَړي.

**جړي وهل** :- (ظفر)-اص- و______ جړي وهل.

**جَړي باجړي** :- (جَ+ړي+با+جَ+ړي)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]- غونډمونډ.

**جَړي باجړي کېدل** :- (اَف) اص-غونډ مونډ کېدل.

**جړېدل** :- (ج+ړې+د+لْ)-[اِپ-مص لا]- ژړېدل.

**جـــز** :- (ج+زْ)-[اِپ-اِس-صـو-مـذ]- (۱) د حلالـې پـه وخـت د وينـې اواز. (۲) په پخکړې کښې د غوړو اچولو يا داغ يا بګار اواز.

**جزجزکول** :- (اص- (۱) د جزجز اواز ختـل- د وينې بژهـار. (۲) دداغ يـا بګـار پـه وخت کښې د غوړو يا تېلو اواز.

**جُز** :- (جُ+زْ)-[ع-اِس-مذ-وا-ج: جزونه]- حصه- برخه- ټکړه.

نشته دبل جُز د زړۀ راښکون هسې

حُسنه شو مرکز دې عطا سترګو ته (حمزه شنواري)

**جَزا** :- (جَ+زا)-[ع-اِس-مؤ]- (۱) بدله- عوض- صله.

يو په سله دې رب نېکه جزا درکه

پس له سلو لا په هورته څو څو چنده (عليخان)

(۲) ثواب.

**جَــزا مونــدل** :- (اص- (۱) بدلــه مونــدل- صــله مونــدل- عــوض مونــدل. (۲) ثواب گټل.

**جَزا ورکول** :- (اص- بدله ورکول- صله ورکول- عوض ورکول.

**جَزاک الله** :- (جزا+ك+ل+لا+هٔ)-[ع-کلمه]- خدا ے تعالي د درته نېك بدل يا عوض درکړي- رحمت د وي په تاباندې. د شاباشي په ډول هم وئيلے کېږي.

**جزائِر** :- (جَ+زا+ئِي+رُ)-[ع-اس-ج]- جزيرې- د جزيره جمع- ټاپوان- ټاپوگان.

**جَزائيل** :- (جَ+زا+ئيلُ)-[اپ (ظفر) اس-مذ]- جرائيل- غربين- د پخواني زمانې يو قسم ټوپك.

**جزائيلچــي** :- (جَ+زا+ئيــلْ+چِيُ)-[اپ (ظفــر)-اس ص- مــذ]- بنــهٔ ويشــتونکے- جزائيل په ښهٔ ډول په درست شست چلوُونکے.

**جِزبــز** :- (ج+زْ+ب+زْ)-[اپ (ظفــر)-اس-مــذ]- (۱) د يــوې لــويې نامــه. (۲) سوخت- په تاؤ کښې- غُصه.

**جَزبزائي** :- (ج+زْ+بَ+زا+ئي)-[اپ (ب،خ)-اس-مذ]- (۱) د وينې جزجز کول. (۲) د داغ يا بگار کولو په وخت د تېلو يا غوړو اواز. د دستونو په حالت کښې د باد وتلو اواز.

**جُزبندي** :- (جُز+ب+نْ+دي)-[فا-اس-مؤ]- د کتاب هر جُز بېل بېل گنډل او بيا يو ځاے کول او جلد ورته لگول.

**جُزبندي کول** :- (اص- د کتاب گنډل- او گټي ورته لگول.

**جُزدان** :- (جُز+دا+نْ)-[فا-اس-مذ-وا-ج: جُزدانونه]- بسته.

**جَــزر** :- (جَ+زَ+رْ)-[ع-اس-مــذ]- (۱) د سمندر د اوبــو د ځېــو کوزېــدل. (۲) د حساب يوه قاعده.

**جَــزر و مــدّ** :- (جَزر+و+مَ+دْ)-[ع-اس-مــذ]- د سمندر د اُوبــو د ځپــو ختــل- او کوزېدل- مدّ و جزر.

**جَزع** :- (جَ+زَ+عْ)-[ع-اس-مؤ]- بې صبري- بې قراري- ناقلاري.

**جَــزع فَــزع** :- (جَزع+ف+زَ+عْ)-[ع-اس-مـؤ]- ژړا انگـولا- نـارې سُـورې- چغـې چغارې.

**جَــزع فَــزع کــول**:- (اص- ژړا انگـولا کـول- نـارې سُـورې وهـل- چغـې چغـارې ويستل.

**جِزغاله** :- (ج+زْ+غا+له)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ-وا-ج: جزغـالې)]- گگړې- کسکر- بوگړې- کرُوپې.

**جزکے** :- (ج+زْ+کَے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-صو-مذ]- جزهـار- د داغ يـا بگـار کولو په وخت د غوړو اواز- د کباب د پخولو اواز.

**جزگي** :- (ج+زْ+گيِ)-[اپ (سو)-اس-مؤ]- پوسکي- پسکه- باد.

**جزگي مار** :- (ج+زْ+گي+ما+رْ)-[اپ (سو)-اس ص-مذ (مؤ-وا: جزگي- مـاره-ج: جزگي مارې)]- پسکن.

**جَــزم** :- (جَ+زَ+مْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) غړونـدے- وقـف- د ټکي د سـاکن کولـو علامت. (۲) مضبوط- پوخ. (۳) اراده.

پس له بنده دے دا عزم
د خوشحال د خاطر جزم

**جزول** :- (ج+زْ+و+لْ)-[اپ-مص مت]- کباب يا غوښـه تولـه يـا پـه غـوړو يـا تېلـو کښې سره کول.

**جزهار** :- (ج+زْ+ها+رْ)-[اجز جزائي- جزکے- جزهار.

**جزېــدل** :- (ج+زي+د+لْ)-[اپ-مـص لا]- د کبـاب يـا غوښـې پـه تېلـو يـا غـوړو کښې تلېدل.

**جزېدنگ** :- (ج+زي+دَ+نْ+گْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- و____ جزېدنه.

**جزېدنه** :- (ج+زي+د+نه)-[اپ-حمص]- جزېدنگ- جزېدهٔ- د کبـاب يـا غوښـې په غوړو يا تېلو کښې سره کېدنه.

**جزېــدُونکے** :- (ج+زي+دُو+نْ+کَـے)-[اپ-مـف-مـذ-وا-ج: جزېــدُونکي- (مـؤ: جزېدُونکې)]- په غوړو يا تېلو کښې سُورکېدُونکے- تلېدُونکے.

**جزېدهٔ** :- (ج+زي+ده)-پ-حمص]- و______ جزېدنه.

**جَزيــره** :- (جَ+زِي+رَه)-[فا-اس-مؤ-وا-ج: جزيرې]- ټاپُو- د وُچوېې هغـه ټوټـه چې گېرچاپېره ئې اُوبهٔ وي.

**جَزيره نما** :- (جَزيره+نْ+ما)-[فا-اس]- د ټاپو شان- د مزکې هغه ټوټه چې درې طرف ته ئې اُوبهٔ وي او يو طَرف ته وچوېه.

**جزيــه** :- (ج+زْ+يـه)-[ع-اس-مؤ-وا]- محصول- هغه ټېکس چې د نوشيروان بادشاه په وخت د داسې کسانو نه اخستے شو چې د فوجي خدمت نه بـه معاف وو او په اسلامي حکومت کښې د غېر مسلمانانو نه د هغوي د حفاظت په بدل کښې اخستے شي.

**جزيه اخستل** :- (اص- قلنگ يا ټېکس اخستل.

**جزيه ادا کول** :- (اص- قلنگ يا ټېکس ورکول- جزيه ورکول.

**جزيه ورکول** :- (اص)- و______ جزيه ادا کول.

**جڙ** :- (ج+ڙ ياج+گْ)-[اپ-اس صو-مذ]- د حلالې پـه وخت د وينې راوتلو اواز- جز.

**جڙکے** :- (ج+ڙْ+کَے يـا ج+گَ+کـے)-[اَف:پ (قـاموس)- جـز جزائـې- جـزکے د حلالې په وخت د وينې په يو مخ اواز.

**جڙگے** :- (ج+ڙْ+گَے يا ج+گَ+کَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- جڙگے- جشـکے- سڙگے- گيشکے- ششودگے.

**جڙمــه** :- (ج+ڙْ+مــه+يا ج+گْ+مــه)-[اَف:پ (قـاموس)- اس-مـؤ-وا-ج: جـڙمې]- زېزمه- د سترگې د ښو نه پاس حصه.

**جڙهار** :- (ج+ڙ+ها+رْ ياج+گ+ها+رْ)[اپ-اس صو-مذ]- و____ جزهار.

**جَس** :- (جَ+سْ)-[اپ-فا: جست- اس-مذ]- (۱) يو قسم ذات. (۲) غېرت

**بې حسه** :- (اص)- بې غېرته.

**جسارت** :- (جَ+سا+رَ+تْ)-[ع-اس-مؤ]- زړورتيا- بهادري- همت.

**جَســامت** :- (جَ+ســا+مَ+تْ)-[ع-اس-مـذ]- غټـوالے- پلنـوالے- اوږدوالے- غرقوالے- حجم.

**جَست** :- (جَ+سْ+تْ)-[فا-اس-مذ]- (۱) جَس. (۲) ترپ ټوپ.

**جُستجوئ** :- (جُ+سْ+تَ+جو+ئِي)-[اپ-فا: جستجو-اس]- تـالاش- لټـون طلب- جستجوئې- جست و جوئ.

جستجوئ به مې روح وکړي و وتو ته
که له زړهٔ مې د خوبانو جستجوئ لاړ (حميد)

**جُستجوئي** :- (ج+س+ت+جوئي)-[اپ-اس]- و____ جستجوئ.

چـې قـيمت د کالـي خومره
پسې هومره جستجوئې وي (خوشحال)

**جُستو جوئ** :- (جُ+سْ+تْ+وَ+جوئي)-[اپ-اس]- و____ جُستجوئ.

که تهٔ سل ځله زما ئې او زهٔ ستايم
تلونے نهٔ دے له ما جستجوئ د ستا (رحمٰن بابا)

**جَسته** :- (جَ+سْ+تَه)-[پ (ظفر)-اِس-مؤ-وا-ج: جستې]- د پخوانۍ زمانې يو قسم پيزار.

**جَسټس** :- (جَ+سْ+ټ+سْ)-[اَنګ-اِس-مذ]- (۱) انصاف. (۲) لوے جج- د هائيکورټ يا سُپريم کورټ جج.

**جَسد** :- (جَ+سَ+دْ)-[ع-اِس-مذ-وا]- جسم- تن- بدن.

**جَسر** :- (جَ+سَ+رْ)-[پ (ظفر)-اِس-مذ]- غټ مضبوط اوښ- بربرو.

**جِسم** :- (جِ+سْ+مْ)-[فا-اِس-مذ-وا-ج: جسمُونه]- وجود- تن- بدن.

**جِسماني** :- (جِ+سْ+ما+نِيْ)-[فا-ص]- د تَن يا بدن سره تعلق لرُونکے- بدني.

**جُسه** :- (جُ+سَه)-[پ-ع: جُثه-اِس-مؤ]- جسم- وجود- تن.

چې تر ډېره ئې ويسا په جُسه نۀ کړه

بېلـتـانـۀ وو يـرولے زما رُوح (عليخان)

**جسے** :- (جُ+سے)-[پ (سو)-اِس-مذ]- جيسے- مَسين کنډول.

**جَسيم** :- (جَ+سِي+مْ)-[فـا-اِس-ص-مـذ-(مـؤ-وا: جسـيمه-ج: جسـيمے)]- (۱) غټ- مضبوط. (۲) لوے- عظيم.

تۀ رسولؐ د رب کريم ئې

هم جسيم نسيم و سيم ئې (عليخان)

**جشکے** :- (ج+شْ+کَے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- و____ جړګے.

**جشن** :- (ج+شَ+نْ)-[فا-اِس-مذ-وا-ج: جشنُونه]- (۱) خوشي- ښادي.

زۀ غمجن په عيد په جشن خبر نۀ شوم

کـه درست خلق د د هـلي ابتهاج کا (خوشحال)

(۲) د تخت نشينۍ جلسه.

**جشن جوړول** :- (اِص)- (۱) جشـن کـول- خوشي کـول. (۲) د تخت نشينۍ جلسه کول.

**جشن کول** :- (اَص)- و_____ جشن جوړول.

**جشے** :- (ج+شَے)-[اَف:پ (قاموس)- اِص-مذ]- يو ازغـن بُوټے چې پـاڼې ئې پـه جامو او ډګډو بزو په وېښتو پورې انښلي.

**جعفر** :- (جَ+عْ+فَ+رْ)-[ع-اِس-مـذ]- (۱) پـه دولسـو امامـانو کښـې د يـو نـوم. (۲) د جعفر سره نسبت لرُونکے.

**جعل** :- (جَ+عَ+لْ)-[ع-اِس-مذ-وا]- (۱) بناوټ- جوړښت. (۲) نقلي څيـز اصـلي ظاهرول. (۳) ټګي- فرېب- مکر- دوکه. (۴) د غوشايانو ګونګټ.

يو تور بورا دے يو تور جَعل دے

قسمت د دواړو سره بېل بېل دے (خوشحال)

**جَعل ساز** :- (جَعل+سا+زْ)-[فا-اِس ص-مذ]- ټګ برګ- فرېبي- دوکه باز.

**جَعل سازي** :- (جَعل+سا+زِيْ)-[فا-اِس-مؤ]- ټګي برګي- دوکه بازي- فرېب.

**جَعلي** :- (جَ+عْ+لِي)-[ع-ص]- نقلي- چې اصل نۀ وي.

**جَغ** :- (جَ+غْ)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: جَغونه]- جُغ-ژغ-د لرګي هغـه چوکټ چې د قُلبې کولو په وخت د غوايانو غاړې ته اچولے شي.

چـلـوې ژبـه پـه بېهوده خبرو

جغ را کاږې د شيطان سره قلبه ئې (حافظ الپوري)

**جغ غاړې تـه اچول** :- (اِص)- (۱) د قلبې دپاره د غوايـو غـاړې تـه ژغ وراچـول. (۲) حکم منل- تابعداري کول.

**جُغ** :- (جُ+غْ)- [اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- جوغ- جغ- ژغ.

**جغَات** :- (ج+غا+تْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- زحمت- تکليف- تاوان.

**جَغاغه** :- (جَ+غَا+غَه)-[پ- (ظفر)-اِس-مؤ-وا-ج: جغاغې]- يو قسم جاړه.

**جغانغه** :- (ج+غا+نْ+غـه)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـؤ-وا-ج: جغـانغې]- د چـرګ پَرپره.

**جغاول** :- (ج+غا+و+لْ)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: جغاولونه]- (۱) هغـه غبنـتلے مـزے چې د باز ښڅ ته اچولے شي. (۲) هار- اميل.

زرګرانو بـه راوړۀ جغاوُلُونه

شاخېلانو به راوړۀ غشي لينده (عبدالغفور)

**جَغبوز** :- (جَ+غْ+بُوْ+زْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- پشـوګے- د ملـخ پـه شـان يـو وېښتن چينجے چې په غنمو کښې پېدا کېږي.

**جغجغـــانے** :- (جَ+غْ+ج+غـــا+نَے)-[اَف:پ (قـــاموس)-اِس-مـــذ-وا-ج: جغجغـاني]- د لرګـي هغـه ګرګـړے چـې ماشـومان ئـې د سـر د پاسـه تاووي او اواز ترينه اُوباسي.

**جُغدے** :- (جُ+غْ+دَ+ے)-[پ-(خ)ص-مذ-وا-ج: جُغدي]- سوے- وريت.

چې ښاربۀ مړُونه جُغد يکښېږدي مردان دي

تـويـوي پـه سـپينو وريـژو زېړ غوړي (خوشحال)

**جُغديتوب** :- (جُ+غْ+دي+تو+بْ)-[پ (خ)-اِس-مذ]- وريتوالے.

**جُغرافيائي** :- (جُ+غْ+را+ف+يا+ئيْ)-[د جغرافيې سره تعلق لرُونکے.

**جُغرافيه** :- (ج+غْ+را+ف+يَه)-[يُو-اَنګ:جيا ګرافي- اِس-مؤ]- د مزکې علم.

**جَغرى** :- (جَ+غْ+رِيْ)-[پ (سو)-اِس-مؤ]- د سپي اونګا.

**جَغرى ايستل** :- (سو)اِص- د سپي اونګېدل- رُوړې ايستل.

**جُغړي** :- (جُ+غَ+ړي)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]- د سخاوالي لـه کبـه د پښـې د ګوتې لاندې چاؤدېدل.

**جُغلندے** :- (جُ+غْ+لَ+نْ+دَ+ے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: جُغلندي- جغلنديان]- چغونډے- ژغونډے- د ژغ لرګے.

**جُغنپــــړے** :- (جُ+غْ+نْ+پَ+ړے)-[اَف:پ (قـــاموس)-اِس-مـــذ-وا-ج: جُغنپړي]- سربلانډه- سرباندے- سر بانډي- د ژغ پړے.

**جُغندر** :- (جُ+غ+نْ+د+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- جوغندر- چقندر.

**جغنـډ** :- (ج+غ+نَ+ډ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]- (۱) د سـتې مونـډ. (۲) (ظفر): مېخ- موږے.

**جَغنډے** :- (جَ+غْ+نُ+ډَ+ے)-[پ (ظفر)-اِس-مذ-وا]- ژغنډے- ژغونډے.

**جُغول** :- (جُ+غَ+و+لْ)-[پ (سو) مص مت]- پـه زور ننـه ايسـتل- پـه زور ور منډل- سُوخول.

**جغونډے** :- (ج+غو+نْ+ډَ+ے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]- (۱) ژغونډے. (۲) يو قسم مارغۀ.

**جُغونه** :- (جُ+غ+و+نه)-[پ(سو)-حمص]- پـه زور ننـه ايستنه- پـه زور ورمنډنه- سُوخونه.

**جُغوُونکے** :- (جُ+غَ+وُ+نْ+کَے)-[پ(سـو)-اِس فـاع-مـذ-وا-ج: جُغـوونکي (مـؤ: جُغـوونکې)]- پـه زور ننـه ايسـتُونکے- پـه زور ورمنـډُونکے- سوخوُونکے.

**جغه** :- (ج+غَه)-[پ (خ)-اِس-مؤ-وا]- کرکره- تاج-طُرّه-شمله.

د ناکام قلنګ ئې کښېښود په عاشقو

چې دلدار اېښې جغه د خودکامۍ ده (عليخان)

**جغه** :- (ج+غه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]- يو قسم بوټے.

**جُغه** :- (جُ+غَه)-[پ-اِس-مؤ-وا-ج: جغې]- د پټي لوے ورين کوټ- چُوغه.

**جَغي** :- (جَ+غَے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: جغي]- ډولي- زامبېل.

**جُغېدل** :- (جُ+غي+د+لْ)-[اِپ (سو)-مص لا] -په زور په کنبي تنه کېدل- په زور ور منډلے کېدل- سُوخېدل.

**جُغېدنه** :- (جُ+غي+د+نه)-[اِپ (سو) حمص]- په زور ور تنه کېدنه- په زور ور منډلے کېدنه- سُوخېدنه.

**جُغېدُونکے** :- (جُ+غي+دُو+نْ+کَ)-[اِپ (سو) مف-مذ-وا-ج: جغېدُونکي (مؤ: جغېدونکې)]- په زور ور تنه کېدُونکے- په زور ور منډلے کېدُونکے- سُوخېدُونکے.

**جَفا** :- (جَ+فا)-[فا-اس-مؤ]- ظلم- جبر- ستم- سختي.

زۀ طاهر به د لمنې د تنگوالي گيله نۀ کړم
که گُلونه د کرم وي او ازغي که د جفا وي (طاهر کلاچوي)

**جفا اوربدل** :- (اِص)- سختي خبرې اورېدل.

چــې لــويو له هلکو جفا اورم
مگر دود د وفا نشته ستا په ځير (خوشحال)

**جفا کول** :- (اِص)- ظلم کول- جبر کول- سختي کول.

د هغۀ په وفا ځۀ خو شي خوشحال
چې وفا ورسره کا بيا زر جفا کا

**جفا ليدل** :- (اِص)- سختي ليدل- ظلم ليدل- ناړامه ليدل.

لامې کچې وي محبت چې ورته گورمه زۀ
لامې پېدا د وفا زور شي چې جفا اووينم (حمزه شينواري)

**جفـا وړل** :- (اَص)- ظلم زغمل- زياتے برداشت کول- جبر زغملو ته غاړه کښېښول.

د وفـا دپـاره ډېـره جـفـا وړم زۀ
بارے نۀ شي له علّت سره معلول پېښ (عليخان)

**جَفا جويه** :- (جَفا+جُوْ+يَه)-[اِپ-اس ص]- جفا خويه- ظلم- سخت گير- د بد خوي خاوند.

چې بوسې د جفا جويو د خُلې اخلي
گـُوندې اخلي د ياغيانو قلنگونه (خوشحال)

**جَفا خويه** :- (جفا+خُوْ+يَه)-[اِپ-اس ص]- و_____ جفاجُويه.

په زړۀ سنگه شوخ و شنگه
جـفـا خـويــــه زړۀ ازاره (خوشحال)

**جفا کار** :- (جَفا+کا+رْ)-[فا-اِس-ص-مذ]- ظلم- سخت زړے- بدخويه

وفا دار لره وفا شوه
جـفـا کار لره جفا (رحمٰن بابا)

**جفا کاري**:- (جَفا+کا+ريْ)-[فا-اس-مؤ]- ظلم- سخت زړۀ توب- بدخوي.

**جفـا کـش** :- (جَفـا+کَ+شْ)-[فـا-س ص-مـذ (مؤ-وا: جفاکشـه-ج: جفاکشې)]- خواري کښ- محنتي.

په خندا په رُوښو چولې د خلقو
جفا کشه ننبانه اوسه تيرمه شه (حميد)

**جفا کشي** :- (جفا+کَ+شِي)-[فا-اِس-مؤ]- خواري کښي- محنت.

**جُفت** :- (جُ+فْ+تْ)-[فا-اس-مذ]-روت- د طاق مخالف.

جُفت لـــه طاقه راغے
طاق له جُفته گورم ځۀ (احمدشاه ابدالي)

**جُفتي** :- (جُ+فْ+تي)-[فا-ص]- د نر د ښځې سره يوځاے کېدل- جماع

چې جُفتي شي له ناجنسه
ضــائــع کــېږي قــرينه (خوشحال)

**جفر** :- (جَ+فَ+رْ)-[ع-اِس-مذ]- د غيب علم.

**جَق** :- (جَ+قْ)-[اِپ (سو)-اِس-مذ]- جك- بکواس- فضول خبره.

**جَق وهل** :- (سو)- (۱) جك وهل- بکواس کول- فضول ږغېدل. (۲) عبث وخت ضائع کول.

**جقه** :- (ج+قَه)-[اِپ (سو)-اس-مؤ]- گڼه گوره.

**جقه جوړول** :- (سو) اِص- گڼه گُوره جوړول.

**جقه جوړېدل** :- (سو) اِص- گڼه گُوره جوړېدل- خلق جمع کېدل.

**جقه جُوقه** :- (جقه+جُوْ+قه)-[اِپ (سو) اس ص-مؤ]- گڼه گوره.

**جَــک** :- (جَ+كْ)-[اِپ-اس-مـذ]- و___جَق ځـۀ جـك وهـې ناصـحه چې وماتـه نصيحت کړې ور دُرومه خپل روزگار کړه زۀ خوشحال په خپل ورزگار يم

**جَک وهل** :- اِص- و______ جق وهل.

چې په شوې کار ځۀ وائې
پُوچ پُوچ وائې وهې جك (حميد)

**جَــک** :- (جَ+كْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]- د اوبـو يـو چيـنـجے. (۲) د شـوملو شاربلو چاټې.

**جکړ** :- (جَ+کَ+ړْ)-[اِپ-اص-مذ-وا-ج: جکړونه-(مؤ-وا: جکړه-ج: جکړې)]- (۱) زُول- طوفان- باد- باران.

تېرې شوې نورې تورې گورې شابه لاسيلۍ نۀ شي
سيلۍ کښې رعدبرق، جم جگړ زُول او ږلۍ نۀ شي (سمندر)

۲- ناراسته- سست.

**جکړ چلېدل** :- ص- زُول-طوفان راتلل- باد باران او سيلۍ شروع کېدل.

**جکړ** :- (ج+کَ+ړْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]- تباهي- خرابي- بربادي.

**جکـول** :- (ج+کَ+و+لْ)-[اِپ (گـن)-مـص مـتـ]- پـه فضـولو او عبث خبرو وخت ضائع کول.

**جکول** :- (ج+کَ+و+لْ)-[اِپ (ب،خ) مص متـ]- راکښـل- زور لگـول- د مينې لـه کبله په زور ايسارول.

**جکونه** :- (ج+ك+و+نه)-[(گـن) حمص]- پـه فضـول او عبث خبرو وخت ضـائع کونه.

**جکونه** :- (ج+ك+و+نه)-[اِپ (ب،خ-حمص]- راکښنـه- زور لگونـه- د مينې لـه کبله په زور ايسارونه.

**جکوُونکـے** :- (ج+ك+وُو+نْ+کَـ)-[اِپ (گـن)-اس فـاع-مـذ-وا-ج جکـوونکي (مؤ:جکوُونکې)]- فضولو او عبث خبرو وخت ضائع کوونکے.

**جکوُونکـــے** :- (ج+کَ+وُو+نْ+ك+ے)-[اِپ (ب،خ)اس فـــاع-مـــذ-وا-ج: جکوُونکي- (مؤ: جکوونکې)] راکښونکے- زورلگوُونکے. د مينې له کبله په زور ايساروُونکے.

**جَکه جَکه** :- (جَ+كْ+جَ+که)-[اَف:پ (قاموس) اس-مؤ]-قصې قطارې په يو مخ خبرې- اوږدې اوږدې خبرې- لوے بحث.

**جَکه جَکه کول** :- (اِص- اُوږدې اوږدې خبرې کول- لوے بحث کول.

**جکېدل** :- (ج+کې+د+لْ)-[اِپ (گن)-مص لا]- په فضول خبرو وخت ضائع کول.

**جکېدنه** :- (ج+کې+د+نه)-[اِپ (ب،خ)-حمص]- زور لگېدنه- راکښلے کېدنه- منجېدنه.

**جکېدُونکے** :- (ج+کې+دُو+نْ+کَ)-[اِپ (گن)-فاع-مذ-وا-ج: جکېدونکي (مؤ: جکېدونکې)]- په فضول خبرو وخت ضائع کوُونکے.

**جکېدونکے** :- (ج+کې+دُو+نْ+کَ)-[اِپ (ب،خ)-فاع-مذ-وا-ج: جکېدونکي (مؤ:

جګېـدونکې] - زور لګـوُونکې - پـه زور ځـان خلاصـوونکې - ځـان راکښوُونکې - منجېدُونکې.

**جګېدۀ** :- (ج+ګي+ده) - [اپ (ګن) - حمص] - و ـــــ جګېدنه.

**جګېدۀ** :- (ج+ګې+دۀ) - [اب، خ) - حمص] - و ـــــ جګېدنه.

**جـګ** :- (ج+ګْ) - [اپ - ص - مـذ - (مـؤ - وا: جګـه - ج: جګـې] - (۱) چـګ - دنـګ - اوچت.

په خپله کار کړې په خپله انکار کړې
جګ په هوایم کله مې خوراك کړې (مرزاخان انصاري)

(۲) ښخ - ولاړ - نېغ.

**جګ دربدل** :- اص - جګ درېدل - نېغ اودرېدل.

**په سترګو کښې جګ دربدل** :- اص - په سترګو کښې نېغ اودرېدل - نۀ هېرېدل - هروخت په سترګو ته واند کېدل - سترګو ته جګ درېدل.

**سترګو ته جګ دربدل** :- اص - و ـــــ په سترګو کښې جګ درېدل.

**سترګې ورتـه جګې نيـول** :- (اص - (۱) سترګې اوچتې ورتـه نيـول. (۲) منتظر کېدل - د چا د راتلو په طمع کېدل - د چا طرف ته پام کول.

**جګ** :- (جَ+ګْ) - [انګ - اس - مذ - وا - ج: جګونه] د اُوبو لوښے.

**جګتـوب** :- (ج+ګ+تـو+ب) - [اپ - اس - مـذ] - جګتيـا - جګـوالے - اوچتـوالے - دنګوالے.

**جګاړ** :- (ج+ګا+ړ) - [اَف: پ (قاموس) اس - مذ] - جنګ جګړه.

**جګتـوب** :- (ج+ګ+تـو+بْ) - [اپ - اس - مـذ] - جګتيـا - جګـوالے - اوچتـوالے دنګوالے.

**جګتيا** :- (ج+ګ+تْ+يا) - [اپ - اس - مؤ] - و ـــــ جګتوب.

**جِـګ جـګ** :- (جِ+ګ+ج+ګْ) - [اَف: پ (قـاموس) اس صـو - مـذ] - د غوايـانو د جنګ کولو په وخت اواز - ډرچکے.

**جګ جګ کول** :- (اَف) اص - د غوايانو د جنګ په وخت ډرچکے کول.

**جګجګانے** :- (ج+ګ+ج+ګا+نَے) - [اَف: پ (قاموس) - اس - مـذ] - (۱) جګجګنے - شکشکه - هغه غشے چې په دېوال کښې لګېدلې نخښنه پرې ويشتلے شي. (۲) د بېړو يا د شپشتو لوبه.

**جګجګنے** :- (ج+ګ+ج+ګ+نَے) - [اَف: پ (قاموس) - اس - مذ] و ـــ جګجګانے

**جګجګے** :- (ج+ګ+ج+ګے) - [اپ - اس - مذ] - ششوګے.

**جګجګۍ** :- (ج+ګْ+ج+ګۍ) - [اپ - اس - مؤ] - جګۍ - منت - زاري.

**جګجګۍ کول** :- (اص - منت زاري کول - جګۍ کول.

**جګجوړ** :- (ج+ګ+جو+ړْ) - [اپ - ص - مذ (مؤ - وا: جګـه جوړه - ج: جګې جوړې)] - جګ جوړ - تندرست - روغ رمټ.

**جګر** :- (ج+ګَ+رْ) - [فا - اس - مذ] - ځيګر - سينه.

**جګرخُون** :- (جګر+خُو+نْ) - [فا - ص] - ځيګرخون - خواري - محنت.

چې موندلے مې ډېر پس په جګرخون وو
بد نصيب کړو هغه جام نسکور له ما (عليخان)

**جګړ** :- (ج+ګَ+ړْ) - [اَف: پ (قاموس) - اس - مذ] - ازغے - زوز.

**جګـړاوُو** :- (ج+ګْ+ړا+وُوْ) - [اَف: پ (قـاموس) - ص - مـذ] - جنګـي - جګـړن جګړمار - جګړيال - جګړيالے.

**جګړمـار** :- (جَ+ګَ+ړْ+مـا+رْ) - [اپ - اس ص - مـذ - (مـؤ - وا: جګړمـاره - ج: جګـړ مارې)] و ـــــ جګړاوُو.

**جګړن** :- (جَ+ګْ+ړ+نْ) - [اپ - اس ص - مذ (مؤ - وا: جګړنه - ج: جګړنې)] - جګړاوو - عسکر - فوځي.

**جګړه** :- (ج+ګْ+ړه) - [اپ - اس - مؤ - وا - ج: جګړې] - تنازغه - جنګ - شور لړائي.

**جګړه کول** :- (اص - جنګ کول - شور کول - تنازعه کول - لړائي کول.

**جګړه کېدل** :- (اص - جنګ کېدل - شورکېدل - تنازعه کېدل - لړائي کېدل.

**جګـړه مـار** :- (جګړه+مـا+رْ) - [اپ تـر - اس ص - مـذ - وا - ج: جګـړه مـاران (مـؤ - وا: جګړه ماره - ج: جګړه مارې)] - و ـ جګړاوُو.

**جګړيال** :- (جَ+ګَ+ړْ+يا+لْ) - [اَف: پ (قاموس) - اس ص - مذ - وا] و ـ جګړاوُو.

**جګړيالے** :- (جَ+ګَ+ړْ+يا+لَے) - [اَف: پ (قاموس) اس ص - مذ - وا] و ـ جګړاوُو.

**جګکټـوړے** :- (ج+ګ+ګُ+ټُـو+ړے) - [اَف: پ (قـاموس) اس - مـذ - وا - ج: جګکټوړي] - ګلاس - د اُوبو څښلو يو خاص لوښے.

**جګل** :- (ج+ګ+لْ) - [اپ (ظفر) - ص - مذ] - (۱) نېغ - مُونډې - ميشت. (۲) اختـه - لګيا - ورته.

**جګل کول** :- (ظفر) اص - ميشته کول - مونډې کول - بسيا کول.

**جګـل کېـدل** :- (ظفر) اص - (۱) ميشـته کېـدل - مُونـډې کېـدل - بسـيا کېـدل. (۲) اخته کېدل - لګيا کېدل.

**جګلاوُو** :- (ج+ګ+لا+وُوْ) - [اَف: پ (قاموس) - اس ص - مذ] رنګ، لوړ او بېوقوف سړے.

**جګنـات** :- (ج+ګ+نـا+تْ) - [اَف: پ (قـاموس) - اس - مـذ] - د قنـدهار پـه علاقـه کښې د کنځلو په ډول استعمالېږي.

**جګناتي** :- (ج+ګْ+نا+تي) - [اَف: پ (قاموس) - اس - مؤ] - کوره ململ - مارکين.

**جګوالـه** :- (ج+ګْ+وا+لـه) - [اَف: پ (قـاموس) - ص - مـؤ] - اوچتـوالے - چګـوالے - رنګوالے - جګوالے.

**جګوالے** :- (ج+ګْ+وا+لَے) - [اپ - ص - مذ] - و ـــــ جګواله.

**جګـول** :- (ج+ګ+و+ل+) - [اپ مـص مـت] - (۱) جګـول - اُوچتـول. (۲) پـاڅول (۳) دېوال اُوچتول. (۴) څۀ څيز نېغ اوُدرول.

**جګوله** :- (جَ+ګْ+و+لَه) - [اپ (ظفر) - اس - مؤ - وا - ج: جګولې] - جګولے - چنار.

**جګولے** :- (ج+ګْ+و+لَے) - [اَف: پ (قاموس) - اس - مذ] - چنار.

**جګونـه** :- (ج+ګ+و+نـه) - [اپ - حمـص] - (۱) جګونـه - اُوچتونـه. (۲) پاڅونـه. (۳) دېوال اُوچتونه. (۴) څۀ څيز نېغ اودرونه.

**جګوُونکے** :- (ج+ګ+وُو+ن+کے) - [اپ اس فـا ع - مـذ - وا - ج: جګوُونکي - (مـؤ: جګـوونکې] - (۱) چګـوُونکے - اوچتـوُونکے. (۲) پـاڅوونکے (۳) دېـوال اوچتوُونکے. (۴) څۀ څيز نېغ اُودروونکے.

**جګه** :- (ج+ګه) - [اپ - ص - مؤ - وا - ج: جګې] - چګه - اُوچته - نېغه.

**جِګه** :- (ج+ګ) - [اَف: پ (قاموس) اس - مؤ - وا - ج: جګې] - نکاح کړې ښځه.

**جګۍ** :- (ج+ګی) - [اَف: پ (قاموس) - اس - مؤ] - زاري - منت - خواست.

**جګۍ کول** :- (اَف) - اص - منت زاري کول - خواست کول.

**زاري جګي کول** :- (اَف) - اص - ډېر خواست منت کول.

**جګے** :- (ج+ګَے) - [اَف: پ (قاموس) ص - مـذ - مؤ: جګۍ] - د جګ يا چګ اسم تصغير - کم چګ - کم دنګ.

**جګي جګي** :- (ج+ګي+ج+ګي) - [اپ - کلمه - مؤ] - (۱) مرحبا. هرکله راشے پخېر - ځار - قربان. (۲) د خواست کلمه.

پـه وعده د لاس لستونړے راته نيسې
جګي جګي تۀ د رُخ هسې بريد مه کړه (حميد)

**جګي جګي جګي** :- (اص - ډېره زيات منت زاري.

سپین صبا د ګوره د ټیکي په شفق بند کړ
جګي جګي جګي رائې واخله له جبینه (خوشحال)

**جګېدل** :- (ج+ګې+د+لْ)-[اِپ-مص]- (۱) جګېدل- اوچتېدل. (۲) پاڅېدل.
نژدې چې که زړهٔ ګل ته د ګلونو په چمن
د ګل څخه را جګ شي خار ازغے ګل د ثمن (نظیر درانے)
(۳) نېغ اودرېدل.

**جګېدنګ** :- (ج+ګې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف: پ (قاموس)- حمص]و____ جګېدنه.

**جګېدنه** :- (ج+ګې+د+نه)-[اِپ-حمص]- (۱) جګېدنګ- جګېدۀ- جګېدنه- اُوچتېدنه. (۲) پاڅېدنه. (۳) نېغ اُودرېدنه.

**جګېدُونکے** :- (ج+ګې+دُو+نْ+کے)-[اِپ-فاع-مذ-وا-ج: جګېدُونکي- مؤ: جګېدُونکې]- (۱) اوچتېدُونکے- جګېدُونکے. (۲) ولاړېدُونکے- پاڅېدُونکے. (۳) نېغ اودرېدُونکے.

**جګېدۀ** :- (ج+ګې+دۀ)-پ-حمص]- و____ جګېدنه.

**جَل** :- (جَ+لْ)-[اِپ-اس-مذ]- (۱) تود باد. ګرم باد. (۲) د تندې اخستو مرض. (۳) د باغ نه چاپېره د غنو باړ یا ډېرهٔ. (۴) د قلانه چاپېره خندق.
که دښمن په قلاوُو رفع کېږي
د اجل دفع په کوټ او په جل څهٔ کړي (حافظ الپوري)

**جل** :- (ج+لْ)-[اِپ-اس-مؤ]- (۱) جلي- جني- جینکۍ.
جل زلمي لاوادهٔ نهٔ وي سر کونډ شي
دا رنګ چارې د مرګي په خر خشو دي (رحمان بابا)

**جُل** :- (جُ+لْ)-[اف:پ (قاموس) اس-مذ]- (۱) څکېدل. خوزېدل. (۲) د کور د مال اسباب دپاره د جهاز ټکي سره استعمالېږي لکه: (د کور جل او جهاز)

**جلا** :- (ج+لا)-[اِپ-ص]- جُدا- بېل- ګوښے- یواځې- ځان ته.
د خوبانو د خندا لائق به نهٔ شي
څو د عشق له عقل پلې جلا نهٔ کا (حمید)

**جلا کول** :- (اِص- (۱) بېلول- جدا کول.
ستا خونخوارو زلفو زهٔ تنها تتلے نهٔ یم
ستا خو خوار غونډي لانور هسې جلا کا (خوشحال)

**جلا کېدل** :- (اِص- جدا کېدل- بېلېدل- ځان ته کېدل.

**جلا** :- (جِ+لا)-[ع-ص]- چمك- رڼائي- چڼك- ځلا.
زهٔ یم آئینه د سادګۍ د درد جلا لرم
نهٔ ګورمه ځان ته څکه عکس د هر چا لرم (حمزه شینواري)

**جُلاب** :- (جُ+لا+بْ)-[ه-اس-مذ]- جارې- د دستونو راوستو دارو. دا جلاب جمال ګوټه وي (خوشحال خان ختك)

**جُلاب چلېدل** :- (اِص- د جاړاشو کول- د جلابو کولو له کبله دستونه راتلل.

**جُلاب کول** :- (اِص- د جاړ اثر کول- د جلابو کولو له کبله دستونه راتلل.

**جَلات** :- (جَ+لا+تْ)[اِپ-ع: جلاد-اس-مذ]- (۱) شرمن ویستُونکے. (۲) دُرې لګوُونکے. (۳) سر پرې کوُونکے.
ژبه ور ته له ژبې افت رسي
پرې کوي د زړګي سر جلاته ژبه (حمید)

**جلاتوب** :- (جلا+تو+ب)-[اِپ-اس-مؤ]- جلاوالے- جدائي- بېلتون.

**جَلاجل** :- (جَ+لا+جَ+لْ)-[اِپ (ظفر)-اس-مذ]- ګونګرو چې په شرمنه یا په څهٔ پتۍ کښې پېړلي شوي وي او د اُوښ، اَس یا غوایهٔ غاړې ته ئې اچوي.

**جلاجلا** :- (جلا+ج+لا+)-[اِپ-ص]- بېل بېل- جُدا جُدا.

**جَلاد** :- (جَ+لا+دْ)-[ع-اس-مذ]- و____ جلات.
چې په دیو کښې یو ښهٔ وي
د هغهٔ د سر جلاد وي (خوشحال)

**جَلاړ** :- (ج+لا+ړْ)-[اِپ (ظفر)- اس-مذ-وا-ج: جلاړُونه]- په نهر جوړ اَرټ.

**جَلال** :- (جَ+لا+لْ)-[ع-اس-مذ]- لوئي- زبرګي- بزرګي- شان- دبدبه.
ښهٔ هغه چې ډېر لښکر وریسې درومي
ډېر ئې کبر، ډېر ئې جاه، ډېر ئې جلال دے (خوشحال)

**جَلالُ الدّین** :- (جَ+لا+لُ+د+دي+نْ)-[ع-اس-مذ]- د مسلمانانو یو نوم لکه: جلال الدین رومي، جلال الدین اکبر- جلال الدین خلجي.
بیا سلطان جلال الدین په سریر کښېناست
چې په اصل کښې غلجے د ولایت ؤ (خوشحال)

**جلاله** :- (ج+لا+له)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: جلالې]- (۱) د جاري اوبو چینه. (۲) د مردان په ضلع او په ملاکنډ کښې د ځایونو نومونه. ټپه:
ټپه: د جلاله ګودره وران شئ
په جینکو دې ساه لنډے ولګونه!

**جَلالي** :- (جَ+لا+لي)-[اِفا-ص]- (۱) جلال لرُونکے- د خداے پاك هغه صفت چې د عظمت شان ترې څرګند بېږي. (۲) غضبناك- خوفناك (۳) د درویشانو یوه طریقه او سلسله چې د سېد جلال الدین بخاري رح سره تعلق لري.

**جلاوالے** :- (ج+لا+وا+لے)-[اِپ-ص-مذ]- و____ جلاتوب.

**جَلاوطن** :- (جَ+لا+وَ+طَ+نْ)-[اِفا-ص-مذ]- د وطن نه ویستلے- ښهر نه شړونکے کړے شوے. ضلع خارج کړے.
زهٔ یو لوغړن یم خوار خسته جلاوطن یم
هسې ارزومند یم سر ګنیم سپك تر ګیاه (علیخان)

**جَلاوطني** :- (جلا+وَ+طَ+ني)-[اِفا-اس-مؤ]- د وطن نه ویستنه- پردېس ته شړنه.

**جَلائي** :- (جَ+لا+ئې)-[اِپ-اس-مؤ]- ځلا- چڼك- چمك.
که په اور کښې د سرو زرو وښے پرېوزي
عېب نشته په دا کار کښې ئې جلائې دے (خوشحال)

**جَلب** :- (جَ+لَ+بْ)-[اِپ-اس-مذ]- (۱) ملګرتیا- د چا د رخصتولو په وخت تر څو قدمه ورسره تلل.
ستا د جلب شوق ئې وي را پېښې شي
دا مې که سلګۍ دي خو مهمانې دي (حمزه شنواري)
(۲) هغه پړے چې د څاوري څټ ته اچولے شي- ولونه.
جنګوم اور و پښه له نادانۍ
چې جلب د ستا د ناز نیسم په نیاز (حمید)

**جَلب کول** :- (اِص- ملګرتیا کول- د چاسره څو قدمه د رخصتۍ په وخت تېرول- مېلمه رخصتول.

**جلب نیول** :- (اِص- (۱) ولونه نیول- د څاروي د څټ پړے نیول.
که هر څو ئې جلب نیسم
نهٔ سهېږي بې لابته (خوشحال)
(۲) ایسارول- منع کول- بندول.

**جلباب** :- (ج+لْ+با+بْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) پړونے- څادر.
ژړل لا دوي چې سم جلباب راغے
و تك سُور پُور له غم د خور راغے
(۲) زوړ- ضعیف- بې طاقته.

ما چې عشق ليدلے نۀ دے
د عشق مينې کړم جلباب (احمدشاه ابدالي)

**جَلبل** :- (ج+ل+ب+ل)-[اِپ-ص-مذ]- (۱) سوے- لوګړن.
په دې دوا رو يتيمانو د دې ميان دو
پرې سرے د دوي سينې شوې جلبل کړې (عليخان)
(۲) روښانه- ځلکېدُونکے- ځلکېدُونکے- پرکېدُونکے.

**جَلبل کول** :- (اِص- (۱) سوے لُوغړن کول- روښانه کول- ځلکول- ځلکول- پنکول

**جَلبل کېدل** :- (اِص- (۱) سوے لوغړن کېدل. (۲) روښانه کېدل- ځلکېدل- ځلکېدل- پنکېدل.

**جَلبلے** :- (ج+ل+ب+لے)-[اف:پ (قاموس)- اص-مذ-مؤ: جلبلی)]- روښانه- ځلکېدُونکے- پنکېدونکے- ځلکېدونکے.

**جَلبنګ** :- (ج+ل-ب-ن+ګ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- (۱) يو قسم خوشبويه وابنۀ. (۲) يو بوټے چې د لرګي نه ئې سُرنا جوړېږي.

**جلبلی** :- (ج+ل+ب+لی)-[اَف:پ (قاموس)-ه: جلبېي-اس-مؤ]- ځلوبی- زلېبی- يوقسم خوارۀ.

**جلبی** :- (ج+ل+ب+ی)-[اِپ-اس-معرفه-مؤ]- د مردان په ضلع کښې د صوابۍ په تحصيل کښې يو کلے.

**جَلت** :- (ج+ل+ت)-[اِپ-ص-مذ (مؤ-وا: جلته-ج: جلتې)]- جلد- تېز- چست- چالاک- تُند.

**جلتول** :- (ج+ل+ت+و+ل)-[اِپ-مص مت]- تېزول- چُستول- تُندول.
نخره ناز قېنج و مکېز ځک خُوبان کا
جلتوي په ځان د مينې خريدار سست (عليخان)

**جَلتونه** :- (ج+ل+ت+و+نه)-[اِپ-حمص]- تېزونه- چُستونه- تُندونه.

**جَلتوُونکے** :- (ج+ل+ت+وُ+ن+کے)-[اِپ-اس فاع-مذ-وا-ج: جلتوُونکي (مؤ: جلتوُونکې)]- تېزوُونکے- چُستوُونکے.

**جلته** :- (ج+ل+ته)-[اِپ (ظفر)-اس-مؤ-وا]- اوږده سر پوښه ټوکره چې د ونو د نرو ځانګونه جوړېږي.

**جلته** :- (ج+ل+ته)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: جلتې]- انډېرے پنډېرے- پرېږي. هغه کندو چې د مزري يا د ونو د ځانګونه د غلے کښېښولو دپاره جوړلے شي. پنډوره

**جَلتي** :- (ج+ل+تي)- اِپ-ه: جلدي- ص-مؤ]- تيزي- تُندي- بيړه- چُستي.

**جلتېدل** :- (ج+ل+تي+د+ل)-[اِپ-مص لا]- تېزېدل- چُستېدل- تُندېدل.

**جلتېدنـه** :- (ج+ل+تي+د+نـه)-[اِپ-حمص]- تېزېدنه- چُستېدنه- تُندېدنه- جلتېدۀ.

**جَلتېدُونکے** :- (ج+ل+تې+دُو+ن+کے)-[اِپ-فاع-مذ-وا-ج: جلتېدُونکي (مؤ- جلتېدونکې)]- تېزېدُونکے- چُستېدُونکے- تُندېدُونکے.

**جَلتېدۀ** :- (ج+ل+تې+دۀ)-[اِپ-حمص]- و______ جلتېدنه.

**جلـد** :- (ج+ل+د)-[ع-اس-مذ-وا-ج: جَلدُونه]- (۱) څرمن- پوستکے. (۲) د کتاب وزر- قايه. (۳) د کتاب يوه حصه.

**جلدباز** :- (ج+ل+د+با+ز)-[فا-اس ص-مذ (مؤ: جلدبازه- ج: جلدبازې)]- جلتي کوُونکے- بيړه کوُونکے- تادي کوُونکے.

**جلدبازي** :- (ج+ل+د+با+زي)-[فا-اس-يؤ]- جلتي- بيړه- تادي.

**جلدبندي** :- (جلد+ب+ن+دي)-[فا-اس مؤ]- کتاب ته ګتې لګول- کتاب ته وزرې خېژول- کتاب ته قائې لګول.

**جلدساز** :- (جلد+سا+ز)-[فا-اس ص-مذ-وا-ج: جلدسازان]- کتاب ته جلد خېژوُونکے- کتاب ته د وزرو د لګولو کار کوُونکے- قائې لګوونکے.

**جلدسازي** :- (جلد+سا+زي)-[فا-اس-مؤ]- کتاب ته د جلد خېژولو کار کتاب ته د وزرو لګولو کار- تاب ته د قائې لګولو کار.

**جلسه** :- (ج+ل+سه)-[ع-اس-مؤ-وا-ج: جسلې]- (۱) غونډه- نشست- اجلاس. (۲) محفل- مجلس. (۳) په نمانځه کښې په التحيات کښېناستۀ.

**جَلسه جوړول** :- (جلسه رابلل- غونډه ګړدول- يو ځاے کېدل.

**جَلسه رابلل** :- (اِص)- و______ جلسه جوړول.

**جَلسه کول** :- (اِص)- (۱) غونډه کول- اجلاس کول. (۳) په نمانځه کښې په التحيات کښېناستل.

**جَلسه کېدل** :- (اِص)- (۱) غونډه کېدل- اجلاس کېدل. (۲) محفل جوړېدل- مجلس کېدل.

**جَلسه مخاطب کول** :- (اِص- جلسې ته تقرير کول.

**جلسې نه پاڅېدل** :- (اِص- (۱) د څۀ کار له کبله د جلسې نه تلل. (۲) د ناراضګي يا ناخوشي په ډول د جلسې د ځاے نه روانېدل- د جلسې بائيکاټ کول.

**د جلسې بائيکاټ کول** :- (اِص)- و______ جلسې نه پاڅېدل.

**جلغ** :- (ج+ل+غ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جلغونه]- (۱) جيلغ زېلی. (۲) داکوړو جُونپك چې ځلور پينځۀ دانې په يو ځاے را اوېزاندوي.

**جَلغه** :- (ج+ل+غه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- د پوستين څرمن.

**جِلغه** :- (ج+ل+غه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- بې اعتباره ملګرے- ناويسا او ناکاره مل.

**جِلغه کول** :- (اَف) اِص- په ملګرتيا کښې بې اعتباري کول- ناويسا کېدل.

**جِلغه کېدل** :- (اَف)اِص- په ملګرتيا کښې بې اعتباري کېدل- ناويسا کېدل.

**جَلک** :- (ج+ل+ک)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جلګُونه]- تکله- دُوك.

**جلکوټے** :- (ج+ل+کو+ټے)-[اَف:پ (قاموس)-اس تصغير-مؤ]- جلکۍ ورکوټې جينې- جنوټے.

**جلکـه** :- (ج+ل+کـه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: جلکې)- اس-مؤ-ج: جلکې]- جټکه- جُوټه- صدمه- کړاك.

**جلکه تېرېدل** :- (ظفر) اِص-تکليف- کړاك او صدمه تېرېدل.

**جلکۍ** :- (ج+ل+کۍ)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: جلکيانې)- جلکوټے- ورکوټې جينۍ.
ما د ښو مخونو ښۀ تنداره وکړه
نشته تا غوندې زېبا بله جلکۍ (خوشحال)

**جلګه** :- (ج+ل+ګه)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: جلګې]- د ونو او دربونه ډکه مزکه- شاړه مزکه- مېره.
هغه ډېچې هغه ترنډې له ما ولاړې
چې په خوشې په جلګو ګرځېدلم (خوشحال)

**جَلّ جَلالهٔ** :- (ج+ل+ل+ج+لا+ل+هٔ)-[ع-کلمه] د هغۀ شان ډېر لوے دے. هغه ډېر لوے دے.

**جلنانے** :- (ج+ل+نا+نے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جلناني]- باورچي خانه- اشپزخانه- د ټيکالے پخلو کوټکۍ.

**جلندری** :- (ج+ل+ن+د+ري)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- موم جامه.

**جَلندرے** :- (ج+ل+ن+د+رے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جلندري)]- د ژرندے پل.

**جَلوت** :- (جَ+لْ+وَ+ت)-[ع-اس-مذ]- د خلوت ضد- جمع يا غونډه مجمع.

شمس و قمر دا خلوت زمونږه

پټ تر فرښتو خلوت زمونږه (سمندر)

**جُلوس** :- (جُ+لُو+سْ)-[ع-اسمذ]- (۱) په څۀ خاصه موقعه د ګڼو کسانو غونډه چې په څۀ غرض دمظاهرې کولو دپاره په بازارونو او لارو کوڅو کښې تېرېږي. (۲) دبدب- شان شوکت. (۳) د بادشاهانو په تخت کښېناستل.

**جلوس ويستل** :- (اص- د څۀ مظاهرې په ډول د خلقو په بازارانو، لارو کوڅو کښې تلل.

**جَلوه** :- (جَ+لْ+وَه)-[ع-اس-مؤ]- (۱) نُور- تجلي.

جلوه ئې وکړه په بايزيد کښې

د تيرې تورې په مخ عطار ليدۀ (خوشحال)

(۲) ړنا- نظاره- ښکاره کېدل.

دا پــه تــوره شپه کښې نمر دے چې راوخوت

که جبين د يار کا په مشکينه کلاله کښې حيرانېږم (عليخان)

**جَلوه کول** :- (اص- (۱) تجلي کول. (۲) ښکاره کېدل- ظاهرېدل.

دا ياران چې نن وتاته جلوه کاندي

په دوه ورځې پس به واړه شي فنا (رحمن بابا)

**جلوه ګر** :- (جَلوه+ګَ+رْ)-[اف- اس مص-مذ(مؤ-وا- جلوګره- ج: جلوه ګرې)- جلوه کوُونکے- ښکاره کېدُونکے- تجلي کوُونکے.

چــې ګرد کــائـنـات پــه ژوند کښې تۀ ئې

ئې پټ له سترګو د جهان يا روئيداره ولې ولې (رب نواز اورکزے)

**جلې** :- (ج+لې)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- (۱) پــه يــو مـخ اواز- شـور ژوږ. (۲) د سپي غپا.

**جلې وهل** :- (اَف-اص- دسپي اُونګېدل.

**جِلې مار** :- (جلې+ما+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس ص- مذ]- (۱) شور کـوُونکے- اواز ويستُونکے. (۲) کاسير.

**جَلي** :- (جَ+لِيْ)-[ع-ص-مؤ]- (۱) واضح- روښانه- ظاهره- ړنا.

دا ناتار چې په جلي ذکر شبخان کا

کله زۀ په تا راضي پــه دا ناتار شم (خوشحال)

(۲) په غټو ټکو ليکلے.

**جليا** :- (جَ+لْ+يا)-[پ-ص]- سوے لوے- لُوغړن- وريت.

نـۀ يـم خوښ د سروګلونو په سايا زۀ

خوښ يم ستا د مخ په اور سوے جليا زۀ (رحمٰن بابا)

**جليا کول** :- (اص- سوځول- وريتول.

د زړۀ سر ئې د دارو لمبې جليا کړو

لکه شين لُوګے چې خيژي له ققنس (عليخان)

**جليا کېدل** :- (اص-ل- وريتېدل.

زۀ په دوست نما دښمن وغلېدم جليا شوم

پښه مې په ايرو ايښوده بوخته په خو ګلن شوه (عليخان)

**جَلي بلي** :- (جَ+لِي+بَ+لِـيْ)-[اف:پ (قاموس)- اس-مؤ]- منت زاري- شـور فرياد- واويلا.

**جَلي بلي کول** :- (اَف) اص- منت زاري کول- شور فرياد کول.

**جلېبې** :- (جَ+لې+بېْ)-[پ-ه-جلېبي-اس-مؤ]- ځلوبې- ځلېبې- يو قسم تاؤ را تاؤ خواږۀ.

**جليل** :- (جَ+لِي+لْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) لوے بزرګ- اعلي. (۲) د خدا ے پاک صفاتي نوم. (۳) د مسلمانانو يو نوم.

**جُـم** :- (جُ+مْ)-[اَف: پ(قـاموس)-اس-مـذ]- نـرے بـاران- پوسـت بـاران. (۲) قبيله- خاندان. (۳) ټول راغونډ.

**جم کول** :- (اَف) اص- ټولول- راغونډول.

**جم کېدل** :- (اَف) اص- ټولېدل- راغونډېدل.

**جَم** :- (جَ+مْ)-[اس معرفه- مذ]- (۱) د جمشېد بادشاه د نوم مخفف.

عُمر د ډېر شي له جم د عمره

په تا به وشي د مرګ طېشونه (خوشحال)

**جُمات** :- (جُ+ما+تْ)-[پ-اس-مذ-وا-ج: جماتونه]- جماعت- مزدك- جميات- د نمانځه مکان چې عوام ورته د خدا ے کور وائي.

**جُمـاتي** :- (جُ+مـا+تي)-[پ-اس-مـذ-وا-ج: جماتيـان-(مـؤ-وا: جماتيـه-ج: جمـاتنې)]- (۱) د جمعـې سره نمـونځ کـوُونکے. (۲) د جمـات خـادم. (۳) جماعتي- هم جماعت- د سبق ملګرے- سبقي.

**جَمادات** :- (جَ+ما+دا+تْ)-[ع-اس-مذ]- بې رُوحه څيزُونه لکه کاڼي- اوسپنه- زر او داسې نور.

**جُمادي الاوُلي** :- (جُ+مَا+دي+ل+اُو+لا)-[ع-اس-معرفه-مؤ]- د اسلامي کال د سپوږمۍ په حساب پنځمه مياشت دريمه خور.

**جُمادي الثانيه** :- (جُ+ما+دي+ث+ثا+ن+يَه)-[ع-اس معرفه-مؤ]- د اسلامي کال د سپوږمۍ په حساب شپږمه مياشت- څلورمه خور ورستۍ خور.

**جَماع** :- (جَ+ما+عْ)-[ع-اس-مذ]- کوروالے- د ښځې او خاوند يوځاے کېدل.

د جماع پــه لــذت خيز کله خبر دے

که ئې حُوره په پلنګ کښېنې څۀ سُود (خوشحال)

**جُماعت** :- (جُ+ما+عَ+تْ)-[ع-اس-مؤ-وا-ج: جماعتونه]- (۱) جُمات- مزدك.

يو رُوند ئې مخکښې راغے د امسا په نخښه تلو

لـيـکن رسـا ووتـل هـغـه تــر ور د جـمـاعـت (سمندر)

**جَمال** :- (جَ+ما+لْ)-[ع-ص-مذ]- ښکلا-حُسن- ښائست.

لکه سترګې تصويري څنبل ئې نۀ وي

چې مې سترګې ښۀ جمال وته کاتۀ کا (خوشحال)

**جَمال څرګندول** :- (اص- جمال ښکاره کول- ښائست ښايل. حُسن برڅېره کول.

آئينه که د جمال کړے ور څرګنده

دا ګدا رحمٰن به شاه سکندر شي

**جَمال ښکاره کول** :- (اص- و_______ جمال څرګندول.

چې مَشعل ئې د جمال راته ښکاره کړ

بـيا پــه مـا باندې پتنګ کا هغه يار

(خوشحال)

**جمالګوټه** :- (ج+ما+لْ+ګو+ټَه)-[ه-اس-مؤ-وا-ج: جمالګوټې]- د دستونو بوټے - جُلابو ته هم وائي.

دا جُلاب جمال ګوټه وي (خوشحال خان ختك)

**جَمـالي** :- (جَ+مـا+لي- فـاتر-اس]- (۱) د رحمـت د شـان تجلـي. (۲) يـو قسـم خربوزه. (۳) په بلوچستان کښې يوه قبيله.

**جمامه** :- (ج+ما+مَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جمامې)- جميا- د شړشمو په شان يوه سبزه چې تېل ورنه وکاږي- تارامیرا. کله:

د جمامې لمنې ګرده به د ورمه راوابه د ړومه!

**جَمباز** :- (جَ+مْ+با+زْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- و____ جامباز

**جَمبړ** :- (ج+َم+ب+ړ)-[اَف:پ (قاموس) اس-مذ]- زړې جامې- ورستې جامې.

**جمبو** :- (ج+َم+بُو)-[اَنګ-اس-مذ]- يو قسم لوے جټ جهاز چې کافي مسافر په کښې ځائ ېږي.

**جَمبوري** :- (ج+َم+بُو+رِي)-[اَنګ-اس-مؤ]- د سکاؤټانو بين الاقوامي غونډه.

**جمبوښ** :- (ج+َم+بُو+ښ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- لويه ډله- زياته ګڼه ګوڼه.

**په يوهٔ جمبوښ تلل** :- (اَف) اص- په يوځاے تلل- په اتفاق تلل- په يوه ډله تلل- په هېر تلل.

**جَمبه** :- (ج+َم+بَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جمبې]- جَنبه- ټولے- پړه- مرسته- طرفداري.

**جمبه کول** :- (اص- طرفداري کول- پَره کول.

**جمبه پړه** :- (جَمبه+پ+َړه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جمبې پړې]- پړه جمبه- ټولے- مرسته- طرفداري.

**جمبه پړه کول** :- (اص- پړه جمبه کول- مرسته کول- طرفداري کول.

**جمبيل** :- (ج+َم+بِي+لْ)-[پ (ګن)-اس-مذ-وا-ج: جمبيلونه]- زمبېل.

**جَمپ** :- (ج+َم+پْ)-[اَنګ-اس-مذ-وا]- ټوپ- ورت.

**جمپ کول** :- (اص- ټوپ وهل- ورتل- جمپ وهل.

**جمپ وهل** :- (اص)- و______ جمپ کول.

**جَمپر** :- (ج+َم+پ+َر)-[اَنګ-اس-مذ]- د زنانوٴ هغه جيکټ شان چې د سارۍ سره ئې اغوندي.

**جمجکړ** :- (ج+َم+ج+کَ+ړ)-[پ-اس ص-مذ]- زُول باران- سيلۍ او باران.

**جَمجکے** :- (ج+َم+جَ+کَے)-[اَف: پ(قاموس)-اس-مذ]- د ببړو يو قسم لوبه.

**جَمجمے** :- (ج+َم+ج+مے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- د تنډے يو قسم کالے.

**جِم خانه** :- (ج+َم+خا+نَه)-[اَنګ-اس-مؤ]- د لوبو کلب- د لوبو کول ځاے.

**جَمدانۍ** :- (ج+َم+دا+نۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- د زنانوٴ د لُوپټو نرۍ سپينه کپړه.

**جَمدر** :- (ج+َم+د+ر)-[پ:اس-مذ-وا-ج: جمدرُونه]- (۱) خنجر- د چاړې يو قسم- جَندر.

مرګه هومره مهلت راکړه په جهان کښې
چې جمدر د مدعي په وينو سُور کړم
(خوشحال)

(۲) جَودر- يو قسم وابښهٔ چې په غنمو کښې راټوک ېږي.

**جَمدر کوټے** :- (جَمدر+کو+ټے)-[پ-اس تصغير-مذ-وا]- ورکوټے جمدر- ورکوټے خنجر.

درزي لاګز لري مقراض سوزن لري
يو جمدر ګوټے خوشحال خيرن لري

**جَمدے** :- (ج+َم+دَے)-[پ (سو)-اس-مذ (مؤ: جمدۍ)]- (۱) ژوندے. (۲) سالم- پُوره- ثابت.

**جمدي جاړند** :- (سو) اص- صحيح سالم- روغ موټ.

**جَمرود** :- (ج+َم+رو+دْ)-[پ-اس معرفه-مذ]- جَم- د خيبر ايجنسۍ يو کلے.

د جمرود په دشت کښې ناست يم
د خـــيبر درې تـــه ګـــورم (حمزه شنواري)

**جَمــــرودے** :- (ج+َم+رو+دَے)-[پ-اس ص-مـــذ-وا-ج: جمروديـــان (مـــؤ: جمرودۍ)]- د جمرود اوسېدونکے- د جمرود سره تعلق لرُونکے.

**جَمشېد** :- (ج+َم+شې+دْ)-[فا-اس-مذ]- جَم- د ايران يو مشهور بادشاه

که جمشېد وو که بهمن که کيقباد وو
که نمرود وو که فرعون وو که شداد وو (رحمٰن بابا)

**جَمع** :- (ج+َم+عْ)-[ع-اس]- (۱) يو ځاے- غونډ- ټول- کل. (۲) ټولے- غونډه. (۳) د حساب يوه قاعده. ميزان. (۴) پنګه- سرمايه- نغدي. (۵) مطمئن- په تسلي.

زړهٔ مې په تا جمع دے چاپېر که تر غمونه دي هم
نهٔ ځي تر ړنا که ظلمتونه وي پرېشان په شمع (حمزه شنواري)

**جمع کول** :- (اص- (۱) يوځاے کول- غونډول- ټولول. (۲) تسله ورکول

جمع نـــهٔ کـــړهٔ زما زړهٔ پرېشانو زلفو
د غدين په هندو بار کښې نهٔ وو نهٔ شو (حميد)

**جمع کېدل** :- (اص- (۱) يوځاے کېدل- غونډېدل- ټولېدل. (۲) د حساب په قاعدې ميزان کېدل.

**جمع بندي** :- (جَمع+ب+َن+دِي)-[فا-اس-مؤ]- (۱) د ماليې يا قلنګ حساب. (۲) د مزکې پېداوار. (۳) ميزان جمع کونه.

**جمع خرچ** :- (جَمع+خَ+ر+چْ)-[فا-اس-مذ]- آمدن او خرڅ- د پېسو راتلل او خرڅ کېدل- راتګ لګښت.

**جمعدار** :- (ج+َم+عْ+دا+رْ)-[فاتر-اس-مذ-وا-ج: جمعداران- (مؤ-وا: جمعداره-ج: جمعدارې)]- (۱) يوه فوځي عهده چې د پلاټون کمانډر وي او س ورته نائب صوبيدار وائي. (۲) معتبر. (۳) صفائي کوُونکے.

**جَمعـــداري** :- (ج+َم+عْ+دا+رِي)-[فـــاتر-اس-مـــؤ]- (۱) د جمعـــدار عهـــده. (۲) معتبري.

**جُمعـــرات** :- (جُ+م+عْ+را+تْ)-[اُر-س-مـــذ]- زيـــارت. جمعـــې نـــه اوّل ورځ- خميس- اودينه.ادينه.

**جُمعـه** :- (جُ+مَعـه)-[ع-اس-مـو-وا-ج: جمعـې]- جُمـه- ادينـه- د جمعـرات او سنيچر په مېنځ کښې ورځ د هفتې بزرګه ورځ چې مسلمانان د ښهر، د کلي په لوے جُمات کښې جمع کېږي او د خطبې نه پس په يوځاے نمونځ کوي.

هغه وخت د ما اختر د ما جمعه ده
چې ديدار راته ښکاره کاندې ليلا (خوشحال)

**جَمعيت** :- (ج+َم+ع+ي+َتْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) ټولے- غونډه- جمع- ګڼه- اتفاق.

جـــمـعـيــت لـــه هـــغه قام څخه اُووت
چې خودبين او پرېشان ئې شول افراد (حمزه شنواري)

(۲) تسلي- دلجمعي.

د لارام د جمعيت شي له زړهٔ لرې
چې خبرې که نژدې و خواته ژبه (حميد)

**جمعيـــت الاقـــوام** :- (ج+َم+عـِي+يْ+تُ+لْ+اَ+قْ+وا+مْ)-[ع-اس-مـذ]- ليـګ آف نيشنز- دنيا- د قومونو هغه غونډه چې د اول جنګ عظيم نه پس د امن د قيامت دپاره جوړه شوې وه- خو د دوېم جنګ عظيم له کبله خپل په خپلـه ختمـه شـوه او د دې پـه ځـاے د اداره اقـوام متحـده بنيـاد کښېښودے شو.

**جَمعيت العلماء** :- (ج+َم+عـِي+يْ+تُ+لْ+لَ+مـا+ء)-[ع-اس-مـذ]- د عالمـانو يـو سياسي ټولے- د علماؤ سياسي پارټي.

**جمګنـــے** :- (ج+َم+ګ+نَـے)-[اَف: پ (قـاموس) ص-مـذ-وا-ج: جمګنـي (مـؤ: جنګنۍ)]- د ژمي سره تعلق لرُونکے.

**جُمګي** :- (جُ+م+ګِي)-[اَف:پ (قاموس)-ص]- هفته وار.

**جَمل** :- (جَ+مَ+لْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) اُوښ. (۲) د اسلامي تاريخ يو جنګ.

**جُمله** :- (جُ+مْ+لَه)-[ع-اس-مؤ-وا-ج: جملې]- (۱) تمام- واړه- ټول.

دا کينه به يو په سله تر اوباسي
که ئې لاس شي په جمله پښتانۀ بر (خوشحال)

(۲) فقره- د څو ټکو مجموعه.

**جملې** :- (جِ+م+لې)-[پ (ګن)-اس-مؤ]- وړوکې کټورې.

**جملي** :- (جِ+م+لي)-[اَف:پ (قاموس)-ص]- غبرګوني- بغرګوني.

**جَمنا** :- (جَ+مْ+نا)-[ه-اس-مؤ]- په بهارت کښې يو درياب.

ګوُندِ وي چې بيا مِ ستاسې جام نصيب شي
پـه ګـنـګا جـمـنا بـه نـۀ وو لـه قديم (خوشحال)

**جَمناسټک** :- (جَ+مْ+نَا+سْ+ټ+کْ)-[اَنـګ-اس-مـذ]- ورزش- کرتـب- د جسماني اعضاؤ مشق.

**جمنېزيم** :- (جَ+مْ+نې+زْ+يَ+مْ)-[ع-اس-مذ]- په ځاے اودرېدل- بې حرکته کېدنه.

تۀ په دې جمود کښې پټې سترګې بېدار اوسه
ژونـد دے حـرکت په تاشو باندې موقوف (حمزه شنواري)

**جمو** :- (جَ+مؤ)-[اس معرفه-مذ]- (۱) د کشمير يوه حصه. (۲) د کشمير يو مشهور ښهر.

**جُمه** :- (جَ+مَه)-[پ-ع: جمعه-اس-مؤ-وا-ج: جمې]و_______ جُمعه.

**جَمهور** :- (جَ+مْ+هُو+رْ)-[ع-اس-مذ]- اُولس- عوام- عام خلق.

**جمهوري** :- (جَ+مْ+هُو+رِيْ)-[فاتر-ص]- عوامي- اُولسي- دعامو خلقو.

**جمهوريت** :- (جَ+مْ+هُو+رِي+يَ+تْ)-[ع-اس-مذ]-اولسي حکومت- عوامي حکومت- هغـه حکومت چې خلق خپـل نمائيندګان پـه خپلې مرضۍ خوښ کړي او بيا هغوي د يو مقرر وخت دپاره د عوامو خدمت کوي. د جمهوريت مشهور تعريف دادے چې "د خلقو د خدمت دپاره د خلقو په ذريعه په خلقو حکومت کول"

هـم دا جمهوريت لري رښا و اَمن
منشا لکه د ستوريو او د نمر يوه وي (حمزه)

**جمې** :- (جَ+مې)- [پ-اس-مذ]- ژمې.

**جُميا** :- (جُ+مْ+يا)[پ-اس-مذ]- جمامه.

**جُميات** :- (جُ+مْ+يا+تْ)-[پ (مهمند)- اس-مذ]- و_____ جُمات.

**جميع** :- (جَ+مِيْ+عْ)-[ع-ص-مذ]- کُل- په جمع- په هېڅ.

**جميـل** :- (جَ+مِـيْ+لْ)-[ع-ص-مـذ-(مـؤ-وا: جميلـه-ج: جميلـې)]- (۱) ښـکلے- ښائسته- پې مخے- مړ-وا:

آشنائي ئې د جمال ده
چې مئين په جميله دے (خوشحال)

**جن** :- (ج+نْ)-[پ-اس-مؤ-وا: جنې]- جينۍ- نجلۍ- جلۍ- وړوکې.

جن په حجاب کښې د مور له ځنګه
مـګر ځان ژغوري د مرد له جنګه (خوشحال)

ښې چين چين څڼې پښتنې جينۍ (خوشحال)

**جِن** :- (جِ+نْ)-[ع-اس-مذ]- پيرے.

**جناب** :- (جَ+نا+بْ)-[ع-ص-مذ]- (۱) حضرت- حضور- صاحب- دعزت ټکے.

د آګرې په کوټ کښې بند شاه جهان دے
د دارا بـــه هـغـه کوُم فاني جناب کښم (خوشحال)

(۲) درګاه- در.

د دنيا مخلوق همه واړه محتاج دے
خدايه سوال کړي علي خان ستا له جناب

**جَنابت** :- (جَ+نا+بَ+تْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) ناپاکي- د سړي او د ښځې د يـو ځاے کېدو په وجه د بدن ناپاک والے. (۲) ګناه.

کــه د ښــکليو ددېـدن مـينه ګناه ده
سکه خوشحال ختټك درست عمر جنابت کا

**جناب عالي** :- (جَناب+عا+لِي)- د لوے مرتبې (درجې) خاوند.

**جِناح** :- (جِ+نا+حْ)-[ع-اس-مذ]- د مسلمانانو يوه قبيلـه چې قائداعظم محمد علي جناح مرحوم په کښې پېدا شوے وو.

**جَنازه** :- (جَ+نا+زَه)-[ع-اس-مؤ-وا-ج: جنازې]- (۱) مړے- مړے قبر ته وړل.

ټپه: د جنازې بازو مې نيسه
چېرې به ما په راستې. خولۀ درکړې وينه!

(۲) د مړي د ښخولو نه اول د هغۀ د مغفرت غوښتلو نمونځ.

**جَنازه اخستل** :- (اص- مړے په کټ اوچتـول- قبرستـان تـه د وړلـو دپاره مړے پورته کول- جنازه اوچتول.

**جنازه اوچتول** :- (اص)- و_______ جنازه اخستل.

**جنازه ايسارول** :- (اص- د چا عزيز د راتګ پورې جنازې ته ډيل ورکول.

**جنازه وړل** :- (اص- مړے قبرستان ته وړل.

**جنازه ويستل** :- (اص- (۱) جنازه د کوره بهرته کول. (۲) څۀ څيز ببخي ختمول.

**جن اوانس** :- (جن+اؤ+اْ+سْ)-[پ تر-اس-مذ]- پيريان او انسانان.

پــه درســت کائـنـات به ئې حـکومت وي
قائم به د انسان په جن او انس باندې عظمت وي (رب نواز اورکزے)

**جنباز** :- (جَ+نْ+با+زْ)-[اَف:پ (قاموس)-(اس-مذ)]- (۱) د اوښ يا څاوري هـوار نۀ تلل. (۲) د درياب څپې.

**جنبـاز وهـل** :- (اَف- اص- (۱) د اوښ يـا څـاروي هـوار نـۀ تلـل- جـوټې وهـل. (۲) د درياب څپې وهل.

**جنبازي** :- (ج+نْ+با+زِيْ)-[پ-اس-مؤ]- د جينکو لوبې- د ګوډويانو سره ځان مشغولول.

غافلان له دې دنيا سره کا لوبې
لکه پېغله جن بازي کا په لوځکو (خوشحال)

**جُنبش** :- (جُ+نْ+بَ+شْ)-[فا-اس-مذ]- حرکت- خوزېدنه.

چــې تېــغ برش کا فتنې جُنبش کا
وئيل هېڅ نۀ شي په داهسې کار کښې (خوشحال)

**جنبش کول** :- (اص- حرکت کول- خوزېدل.

**جنبش کېدل** :- (اص- حرکت کېدل- خوزېدل.

**جُنبک** :- (جُ+نْ+ب+کْ)-[پ-اس-مذ]- (۱) يو بـل کښې ننوتے. (۲) ګڼ- ګوُر (۳) خوندے.

**جَنبه** :- (جَ+نْ+بَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جنبې]- و_____ جمبه.

**جَنت** :- (جَ+نَ+تْ)-[ع-اس-مؤ-وا-ج: جنتونه]- بهشت- باغ- هغـه ځاے چې د قيامت د حساب کتاب نه پس به مؤمنان په کښې داخلېږي.

د جنت حُورې د ستا وي اے زاهده!
ما دپاره فقط غم د جانان پرېږده (طاهر کلاچوي)

**جنت ته بوول** :- (اص- جنت ته بوتلل. جنت ته روانول- جنت وربخښل

زاهد سترګې تر پوښي زهٔ ښکلي ګورم
که جنت لره مې بيائې دا جنجال بس (خوشحال)

**جنت غوښتل** :- (اص- د جنت دُعا کول.
سر درد مې د جنت د غوښتو ورك شي
چې ناڅاپه چېرې شم ستا په بورجل سر (حميد)

**جنت موندل** :- (اص- جنت ګټل- جنت حاصلول.
جنت چا په رياضت موندلے نهٔ دے
ولې بويه هر بنده لره خپل کار (رحمٰن بابا)

**جَنّت البقيـع** :- (ج+نْ+نَ+تُ+لْ+بَ+قِي+عْ)-[ع-اس-مذ]- د مدينې منورې مشهور قبرستان چېرته چې د اهل بيتو قبرونه دي.

**جَنّت الفردوس** :- (ج+نْ+نَ+تُ+لْ+فِ+رْ+دو+سْ)-[ع-اس-مذ]- په اتو وارو جنتونو کښې اعلي جنت.

**جنتر** :- (ج+نْ+تَ+رْ)-[ه-اس-مذ]- (۱) منتر- ټوټکه- تعويذ. (۲) بين يو قسم باجه.

**جنتر کول** :- (اص- منتر کول- ټوټکې کول- تعويذونه کول.

**جنتر منتر** :- (جَنتر+م+نْ+ت+رْ)-[ه-اس-مذ]- (۱) جادوګري- نظر بندي- ټګي ټوري. (۲) رصدګاه- هغه اوچت مکان چې نجوميان په کښې ناست وي او د ستورو ګردش ګوري.

**جَنتري** :- (ج+نْ+تَ+رِيْ)-[ه-اس-مؤ-وا-ج: جنترياني]- تقويم- هغه کتاب چې په کښې د کال ورځې- د ستورو ګردش-زائچې.

**جَنتي** :- (ج+نَ+تِيْ)-[پ-اس ص-وا-ج: جنتيان]- (۱) هغه څوك چې په جنت کښې اوسېږي. (۲) ښه سړے. نېك زړے.
نېکان ځکه جنتيان دي چې مئين شي
په دنيا کښې وربنکاره کا سقر مينه ( عليخان)

**جنتلمين** :- (ج+نْ+ټَ+لْ+م+يْ+نْ)-[انګ- اس ص-مذ]- (۱) نېك سړے- ښهٔ سړے- شريف سړے- بله مانېس. (۲) هغه څوك چې صفا ستُره جامې ئې اغوستې وي.

**جـنج** :- (ج+نْ+جْ)-[ه-اس-مـذ-وا-ج: جنجونـه]- (۱) ورا. (۲) وراخـي (۳) د وادهٔ مېلمانهٔ.

**جنج روانېدل** :- (اص- ورا روانېدل.

**په جنج تلل** :- (اص- په ورا تلل.

**جنجاړے** :- (ج+نْ+جا+ړےْ)-[اَف:پ (قاموس)-ص-مذ-وا-ج: جنجاړي مؤ- جنجاړې]- جنجړ- مړځپن- مړاوے.

**جنجاړي کول** :- (اَف)- اص- مړځپن کول- مړاوے کول- جنجړ کول.

**جنجاړي کېدل** :- (اَف)- اص- مړځپن کېدل- مړاوے کېدل- جنجړ کېدل.

**جنجـال** :- (ج+نْ+جا+لْ)-[ه-اس-مذ-وا-ج: جنجالونـه]- (۱) کشـالـه- لانجـه- معامله. (۲) حېراني- پرېشاني.
دنـيـا بـلا ده ډېـر ئـې جـنـجال دے
څوك به ترې خلاص شي د چا مجال دے (علي خان)

کله ما وته دُعا کله کنځل کړې
درته چا ښيل دا هسې جنجالونه (خوشحال)

**جنجال پېښېدل** :- (اص- لانجه جوړېدل- کشاله پېښېدل.
بې مهرې به د يار څهٔ راسره وکړې
چې له مهره ئې جنجال شو راته پېښ (حميد)

**جنجال کول** :- (اص- کشاله کول- لانجه کول- معامله کول.

نالائق چې لياقت په هېڅ نه غواړې
د برېښنا په رڼا ستن پسې جنجال کا (حميد)

**جنجال کېدل** :- (اص- کشاله کېدل- لانجه کېدل- معامله کېدل.

**جنجالي** :- (جَ+نْ+جا+لِيْ)-[پ-اس ص-مذ-وا-ج: جنجاليان مؤ: وا: جنجالې- ج: جنجالياني]- جنجال کوُونکے- لانجه مار- جنګيالے.
په طلب په استغنا چې تجربه شول
عاشقان معشوقې دواړه جنجالي دي (خوشحال)

**جنجالے** :- (جَ+نْ+جا+لےْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- يو بُوټے چې پاڼې ئې شنې او ګلونه ئې زېړ وي.

**جنجړ** :- (ج+نْ+جَ+ړْ)-اف:پ (قاموس)-اس-مذ]- (۱) خاکي شړ. (۲) د متېرو او دغه قسم نورو غلو نرۍ نرۍ دانې- جنجړك.

**جنجـړ** :- (ج+نْ+جَ+ړْ)-[پ (ګـن)-ص-مـذ (مـؤ-وا: جنجـړه-ج: جنجـړې)]- و ــــــــ جَنجړ.

**جنجړك** :- (ج+نْ+ج+ړ+كْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]و ــــــ جَنجړ.

**جَنجـړې** :- (جَ+نْ+جَ+ړې)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ]- (۱) ذمـه- ذمـه واري. (۲) پروتې- يو بُوټے.

**جَنجل** :- (ج+نْ+جَ+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- يوه غرئيزه ونه.

**جَنجن** :- (ج+نْ+ج+ن+ڼ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- (۱) خالي کارتوس. (۲) د الوان ټکره. (۳) د زخم پرسوب. (۴) مړاوے- مړځپن.

**جَنجوړيا** :- (ج+نْ+جو+ړْ+يـا)-[پ (سـو)ص]- کـټ کـټ- ګـونځې- ګـونځې کرُيتې- کرُيتې- چرمورکے.

**جنجوړك** :- (جَ+نْ+جُو+نْ+ړْ+كْ)-[اَف:پ (قـاموس) اس-مـذ (مؤ: جنجونکه)]- هغه څوك چې شك منې خبرې کوي.

**جَنجي** :- (جَ+نْ+جِي)-[پ-اس-مذ-وا-ج: جنجيان]- (۱) جانجي- دجنج سره تلوُنکے. (۲) د ماهيانو نيولو جال- جَنجے.

**جَنجے** :- (ج+نْ+جَے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: جنجيـان- جنجي]- و ــــــ جَنجي.

**جَند** :- (ج+نْ+دْ)-[پ-اس-مذ]- ځان- د زړهٔ ټوټه- خوږ.
د پيپلو پاڼې خوره په غرهٔ کښې اوسه
نهٔ چې پان د هندوستان خورې زما جندَ (خوشحال)

**جُند** :- (ج+ُنْ+د)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- فطرت- اصل.

**جندر** :- (جَ+نْ+د+ر)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- بنياد- رده- بېخ.

**جندر ختل** :- (اَف)-اص- جندروتل- بېخ ختل- تباه کېدل.

**جندروَتل** :- (اص- و ــــــــ جَندر ختل.

**جَندر** :- (ج+نْ+دَ+رْ)-[پ (مروت) اس-مذ]- جمدر- خنجر.
اے سوهان په غاړه اے سرو زرو جندر وو (د مروتو کسرونه)

**جُندر** :- (ج+ُنْ+دَ+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: جندرُونـه]- (۱) د نېـزې څوکه- غشے. (۲) پنجره.

**جَندار** :- (ج+نْ+د+را)-[پ (بـنين)-اس]- مانجـهٔ- د خـاورو پـنـج غـابـنـے جـنـدره- منداؤ- غاښور.

**جنـدره** :- (ج+نْ+د+رَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جندرې]- (۱) تالـه- کُنجي- کُلپ. (۲) هغه آله چې زرګران پرې تارونه راوکاږي.

**جندره کول** :- (اص- تاله لګول- کُلپ لګول- کُنجي لګول- جندره لګول.

**جندره لګول** :- (اص- و ــــــــ جندره کول.

**جندره ماتول** :- (اِص- (۱) کُلپ ماتول. (۲) غلا کول.

**جَندره** :- (جَ+نْ+دْ+رَه)- [پ-اس-مؤ-وا-ج: جندرې]- ژرنده.

**جَندره کول** :- (اَص- په ژرنده اُوړهٔ کول.

**له جندرې ځخه ایستل** :- (اِص- ازمېښت پرې کول.

**له جندرې ځخه وتل** :- (اِص- په ازمېښت پوره کېدل.

**جندره** :- (جَ+نْ+دَ+رَه)- [اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- و‎____ جَندرا.

**جَندرۍ** :- (جَ+نْ+د+رې)- [اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- د زرګرانو د تار ویستلو آله.

**جَندړي** :- (جَ+نْ+د+ړي)- [ه-اس-مؤ]- جند-ځان- رُوح- ژوند.

**جِندکه** :- (جِ+نْ+د+که)- [اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: جندکې]- پیسه.

**جِندے** :- (جِ+نْ+دَ ے)- [پ-اس معرف-مذ]- په اشنغر کښې د یو دریاب نوم.

پروت وم په دریاب د تحیر کښې جپو وړے
نهٔ پوهېدم هېڅ چې اباسین ورم که جِندي (علیخان)

**جنډ** :- (جَ+نْ+ډ)- [اَف:پ (قاموس) اس-مذ-وا-مو-وا-جنډه-ج: جنډې]- قایم- مضبوط- ولاړ- پوخ ولاړ- نېغ ولاړ.

**جنـډا** :- (جَ+نْ+ډا)- [اَف:پ (قـاموس)-ص]- لالچـي- اروا وړے- حـريص طمعدار.

**جَنډوله** :- (جَ+نْ+ډو+لَـه- پ-اس معرفـه]- د ډېره اسماعیل خـان ضلعې سره ملحقـه قبـائیلي علاقـې د یـو ځـاے نـوم چې د بیټنـو قبیلـه پـه کښـې اوسېږي.

**جنـډه** :- (جَ+نْ+ډَه)- [پ-ه: جهنـډا-اس- مـؤ-وا-ج: جنـډې]- (۱) بیـرغ- نشـان- جنډې. (۲) زره جامه.

**جنـډه اُودرول** :- (اِص- (۱) بیـرغ اوچتـول- جنـډه اوچتـول- جنـډه لګـول- جنـډه ښخول. (۲) کامیابي حاصلول.

**جنډه ښخول** :- (اِص- و‎________ جنډه اُودرول.

**جنډه کوزول** :- (اِص- جنډه ښکته کول- په مقرر وخت جنډه راکوزول او ټولول.

**جنډه لګول** :- (اِص- و‎________ جنډه اودرول.

**جنډه وړل** :- (اِص- بیرغ اوچتول د جلوس یا فوځ په وړاندې جنډه اوچتول.

**جنډه وهل** :- (اِص- د جنـډے پـه ذریعـه د یـو ځـاے نـه بـل ځـاے تـه څـهٔ پیغـام رسول.

**جنډو مېله** :- (اِص- په پښنور کښې د بهار په شروع کښې لګېدوونکے مېله.

**جنـډۍ** :- (جَ+نْ+ډۍ)- [پ-ه: جهنـدي- اس-مـؤ]- (۱) جنـډه. (۲) د ریـل ګـاډي ورکوټې ستېشن.

**جُنډے** :- (جُ+نْ+ډَ ے)- [اَف:پ(قاموس)- اس- مذ]- ځوُنډے- پویك- ګُل.

**جنـرل** :- (جِ+نْ+رَ+لْ)- [اَنګ- اس-مـذ] (۱) جرنیـل- د فـوځ یـوه لویـه عهـده. (۲) عام.

**جنرل اسمبلي** :- (جنرل+اَ+س+م+ب+لْ)- [اَنګ: اس+مؤ]- لویه اسمبلي د دنیـا د قومونو د ورورولۍ لویه غونډه.

**جنرېټر** :- (جِ+نْ+رې+ټ+رْ)- [اَنګ:اس-مذ-وا]- د بجلۍ پیدا کېدو مشین.

**جـڼ جـڼ** :- (ج+نْ+ړ+ج+نْ+ړ)- [اَف:پ (قـاموس)-اس]- یـو قسـم کـارتوس- چپړیت کارتوس.

**جڼ جهڼه** :- (جَ+نْ+ړه+جَ+نْ+ړه)- [اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]شك منه خبره- زنګ زنګ.

**جڼه جڼه کول** :- (اَف)- اِص- شك منه خبره کول- زنګ زنګ کول.

**جَـنس** :- (جَ+نَ+سْ)- [پ (ب) خ)-اس-مـذ-وا-ج: جنسـونه]- دغلـي پـور- د غلـې قرض.

**جَنس اخستل** :- (ب-خ)-اص- غله پور اخستل او بیا هم هغه غله په هغـه هـومره مقدار کښې واپس کول- جنس کول.

**جنس کول** :- (ب،خ)-اِص- و‎__________ جنس اخستل.

**په جنس خوړل** :- (ب،خ) اِص- غله پـه پـور اخسـتل او بیـا پـه هغـهٔ مقـدار کښـې واپس ورکول.

**جِنس** :- (جِ+نْ+س)- [ع-اس-مـذ-و-ج: جنسـونه]- (۱) څیـز-شـے- مـال- اسباب. (۲) ذات- جماعت. (۳) غله- پیداوار- (۴) ښځه نر- تذکیر تانیث.

صحبت له جنس لکه ګلاب دے
د ناجنسانو صحبت عذاب دے (خوشحال)

**جنغـوزے** :- (جَ+نْ+غـو+زَ ے)- [اَف:پ (قـاموس) فـا: چلغـوزه-اس-مـذ-وا-ج: جنغوزي]- زنغوزے- چنغوزے.

**جَنکشن** :- (جَ+نْ+كْ+شَ+نْ)- [اَنګ:اس-مذ-مـا-ج: جنکشنُونه]- د ریـل ګـاډي هغه ستېشن چې د مختلفو طرفونونه د ریل پټړۍ ورته راغلې وي.

**جنګ** :- (جَ+نْ+ګ)- [فا-اس-مذ-وا-ج: جنګونه]- (۱) لړائي- جګړه- نښته.

دا دې ځوك ترڅنګه ناست دے راته وایه
چــې خبرې له رحمٰن سره په جنګ کړے
د عـدل تـوره واخـله
ملك اسلام کړه په جنګونه (خوشحال)

**جنـګ بائیلـل** :- (اِص- جنـګ بـائې کـول- پـه جنـګ کښـې لړبـدل- د جنـګ نـه تښتېدل.

**جنګ بائې کول** :- (اِص- و‎__________ جنګ بائلل.

**جنـګ پـه بیـه اخستل** :- (اِص- جنـګ تـه خوشـحالېدل- خامخـا ځـان تـه نښتـه جوړول.

**جنګ تودول** :- (اِص- جنګ تېزول.

**جنګ تودېدل** :- (اِص- جنګ تېزېدل- په جنګ کښې تُندي راتلل.

**جنګ ته تیارېدل** :- (اِص- جنګ ته جوړېدل- په جنګ کښې ورګډېدل.

**جنګ ته جوړېدل** :- (اِص- جنګ ته تیارېدل.

پاځه محتسبه خوشحال راغے جنګ ته جوړ شه
غـســل پــه مــے وکــړه د مـؤمن وضو سلاح

**جنګ ته غېل** :- (اِص- جنګ ته پتون ټېول- نښتې ته تیار اوسېدل.

**جنګ جنګ کول** :- (اِص- هر وخت د جنګ خبرې کـول- د جنـګ نـه بغېـر بـل مجلس نهٔ کول.

**جنـګ خلاصـول** :- (اِص- جنـګ لنـډول- جنـګ شـلـول- نښـتـه بـس کـول- د جنګېدونکو په مېنځ کښې صلح کول.

**جنګ خلاصېدل** :- (اِص- جنګ بس کېدل.

جنګ خلاص شو خو خوشاك د استعمار پاتې دے
اور مــړ شــو د خـوګـلن لاندې انکار پاتې دے (حمزه شنواري)

**جنګ سـړول** :- (اِص- جنـګ بس کـول- پـه جنـګ کښـې کمے راوستـل- د دوؤ انبنتو په مېنځ کښې د روغې جوړې خبرې کول او جنګ بس کول.

**جنګ سـړېدل** :- (اِص- جنـګ بس کېـدل- پـه جنـګ کښـې کمے راتلـل- د دوؤ انبنتو پـه مېـنځ کښـې د روغـې جوړې خبره کېدل او جنګ بس کېـدل- لکه: جنګ چې سوړ شو موذې تود شو.

**جنګ شلول** :- (اِص- و‎________ جنګ خلاصول.

**جنګ کول** :- (اص- انښته کول- جګړه کول.
لکه سپي چې په مرداره سره جنګ کړي
هسې جنګ کړي په دنيا بې حيا خلق (حميد)

**جنګ لړول** :- (اص- و- جنګ خلاصول.

**جُنګ** :- (ج+ُن+ګ) -[اپ (ظفر) -اس- مذ -وا-ج: جُنګي]جونګړې- جونګ- د اوښ بچې.

**جَنګ آميز** :- (جنګ+آ+مي+ز) -[فا- اس ص-مذ- (مؤ-وا: جنګ آميزه)]- جنګ جوړوونکې- انښته کوُونکې- جنګ انګېز.
په خوي خوني خونريزه، مهرجنه جنګ آميزه
بې باکه عاشق کشه بې پروا له لاډو ډينَ
(خوشحال)

**جنګ انګېز** :- (جنګ+اَ+نْ+ګي+زْ) -[فا- اس ص-مذ (مؤ: جنګ انګېزه)]- و ـــــ جنګ آميز.
خونريزه جنګ انګېزه
بيا په حُسن دل ستان (احمدشاه ابدالي)

**جنګ باز** :- (جَنګ+با+زْ) -[فا- اس ص-مذ- (مؤ: جنګ بازه)]جګړ مار- جګړاوو- جنګجو.
زهٔ ښيشکه چې سر بازيم
دخپل فطرت جنګ بازيم (رښنواز اورکزے)

**جنګ بُوټے** :- (جَنګ+بُو+ټے) -[اَف:پ (قاموس) -اس- مذ -وا-ج: جنګ بوټي]- پروټے- هغه بُوټے چې په وُنو او ديوالونو پاس خېژي.

**جَنګ جَدل** :- (جَنګ+جَ+دَ+لْ) -[فا- اس- مذ]- لړائي- جګړه- انښته.
که هرڅو ئې جنګ جدل په دنيا وکړو
ځنې يو نۀ وړ سکندر او دارا هېڅ (حميد)

**جنګجو** :- (جَنګ+جُوْ) -[فا- اس ص- مذ -وا-ج: جنګجويان]- و ـ جنګ باز.
واړه يــوتــر بــل اخته دي
په خپل کور کښې جنګجويان (خوشحال)

**جنګـره** :- (جَ+نْ+ګ+رَه) -[اَف:پ (قاموس) ص-مؤ-وا-ج: جنګري]جنګيالې- جنګړه.

**جَنګړه** :- (جنګ+ړه) -[اَف:پ (قاموس) -اس-مؤ-وا-ج: جګري]- څلور غاښے- پنج غاښے.

**جنګرېز** :- (جنګ+رې+زْ) -[فا- اس- مذ -وا-ج: جنګرېزونه]- (۱) جنګ. ټپه.
تــل پـــه جــنګريز د ژوندانهٔ کښې
د وطن ناوې د ننګيال غېږې له ځينه!
(۲) د جنګ مېدان. (۳) زيات کاڼي ويشتل- کاڼي ورول.

**جنګرېز جوړول** :- (اص- (۱) يو ځيز په زياتو کاڼو ويشتل. په يو ځيز کاڼي ورول- جنګرېزکول. (۲) جنګ جوړول.

**جنګرېز کول** :- (اص- و ـــــ جنګرېز جوړول.

**جَنګړه** :- (ج+َن+ګ+ړه) -[اپ-ص-مؤ]- و ـــــ جنګړه.

**جنګګاه** :- (جَنګ+ګا+هْ) -[فا- اس]- د جنګ مېدان- د انښتې ډګر.
پر بوتلې کُوټل نۀ شي په جنګ ګاه کښې
لــوے امــان دے غــريبي د غريبانو (حميد)

**جَنګله** :- (ج+َن+ګ+لَه) -[اپ-اُر: جنګلا- اس-مؤ-وا-ج: جنګلې]- ځنګله- باړ- وېړه.

**جنګنې** :- (ج+َن+ګ+نَې) -[اَف:پ (قاموس)- اس-مذ] په ژمي کښې پيدا شوے سېرلے.

**جنګ وغوغا** :- (جنګ+وَ+غَو+غا) -[فا- اس ص-مذ]- جنګ جګړه- نښته شور.
ماسره که تل جنګ و غوغا کوې پرې خوښ يم
مــرم چــې رقــيــبــان به د اوربل کاندې په کلي (خوشحال)

**جنګ و قتال** :- (جَنګ+و+ق+تا+لْ) -[فاتر- مذ]- مرګ- ژوبله- نښته.
د هغو په خونه پېښ جنګ قتال شي
چې هوس د چا د جنګ و د قتال کا (حميد بابا)

**جنګول** :- (ج+َن+ګ+و+لْ) -[اپ-مص مت]- نښلول- په جنګ اخته کول- په جنګ وروستل.

**جنګونه** :- (ج+َن+ګ+و+نه) -[اپ- حمص]- په جنګ اخته کول- په جنګ وروستنه- نښلونه.

**جنګوُونکې** :- (ج+َن+ګ+وُو+ن+کې) -[اپ-اس فاع-مذ -وا-ج: جنګوُونکي- (مؤ: جنګوُونکې)]- په جنګ اخته کوونکې- په جنګ وروستونکې- نښلوونکې.

**جَنګه** :- (ج+َن+ګه) -[اَف:پ (قاموس) اس-مؤ]- (۱) دا يو مټے. (۲) ګټه- فايده.

**جَنګې** :- (ج+َن+ګې) -[اپ-اس-مؤ]- هغه ځاے چې ډېرې وُنې په کښې ولاړې وي- دونو بن.

**جنګې کول** :- (شن) اص- د يارالو دوستانو د صحبت دپاره بهرتلل او ګډه حلالول.

**جنګۍ** :- (ج+َن+ګۍ) -[اَف: پ (قاموس) اس-مؤ]- (۱) دونو بن. (۲) لوې توري جُرابې چې په ژمي کښې اچولې شي- جاکټې.

**جَنګي** :- (ج+َن+ګي) -[اپ-اس-مذ]- (۱) جنګيالې- تُورزن- تورُيالې. (۲) د جنګ سره تعلق لرُونکې.
که بادشاه سره بې شماره خزانې وي
چې ئې ښۀ جنګي لښکر نۀ وي هم هېڅ (خوشحال)

**جَنګے** :- (ج+َن+ګَے) -[اپ-ه-جانګهيا-اس-مذ]- جانګې- هغه لنډ شان پتلون چې پائنڅې ئې د ګوډونه پاس وي.

**جنګيالے** :- (ج+َن+ګ+يا+لَے) -[اپ-اس ص-مذ -وا-ج: جنګيالي (مؤ: جنګيالۍ)]- تورزن- توريالے.
ښو جنګيالے وي ښو ننګيالے وي
خو سخاوت لري هومره بهتر دے (خوشحال)
چې ننګيالي دي دولت هغه مومي
چې ننګيالي دي عزت هغه مومي (خوشحال)

**جنګيالي راتلل** :- (اص- تُوريالے پيدا کېدل.
نۀ به زما غوندې بل ننګيالے راشي
نۀ به زما غوندې بل جنګيالے راشي (خوشحال)

**جَنګي بېړه** :- (جَنګي-بې-ړَه) -[اُر-اس-مؤ]- بحري فوځ- سمندري جهازونه.

**جنګـي جهــاز** :- (جَنګي+جَ+ها+زْ) -[اُر-اس-مـذ-وا-ج: جنګـي جهازونـه] ـ د لړائي جهاز- لوے جهاز.

**جنګېدل** :- (ج+َن+ګي+د+لْ) -[اپ-مص لا]- جنګ کول- نښتل.

**جنګېدُونکے** :- (ج+َن+ګي+دُو+ن+کَے) -[اپ-فاع-مذ-وا-ج: جنګېدونکي (مؤ: جنګېدونکې)]- جنګ کوُونکے- انښتونکے.

**جنګېدهٔ** :- (ج+َن+ګي+دهٔ) -[اپ-حمص]- و ـــــ جنګېدنه.

**جنګي فوځ** :- (جَنګي+فَو+ځ يا ج) -[اپ-اس]جنګېدونکے فوځ- لوے فوځ يا فوج.

**جنګي لاټ** :- (جَنګي+لا+ټ) -[اُر-اس-مذ]- د فوځ لوے افسر- کمانډران

**جَنم** :- (جَ+نَ+مْ)-[ه-اس-مذ] - (۱) پیدائش- نسل. (۲) ژوند- عمر.

**جَنم اَشټمي** :- (جَنم+اَ+شْ+ټَ+مِي)-[ه-اس-مؤ- د هندوانو د کرشن مهاراج د پیدائش ورځ.

**جننګ فېکټړي** :- (ج+نِ+نْ+ګْ+فې+کْ+ټْ+رِيْ)-[اَنګ:اس-مؤ] - دمالوچونه د پُندانې ایستلو یا بېلولو کارخانه.

**جن والے** :- (ج+نْ+وا+لَے)-[اپ-اس-مذ] - پېغلتوب.

چې د جن والي دفتر ئې خور شو
که صاحبي کا بیا خدمتګاره ده (خوشحال)

**جُنوب** :- (جُ+نُوْ+بْ)-[ع-اس-مذ] - سوېل.

د شمال مرغونه واړه
په جنوب شي را روان (خوشحال)

**جُنوبي** :- (جُ+نُوْ+بِيْ)-[ع-ص] - سوېلي.

**جنوټپارے** :- (ج+نُوْ+ټپا+رے)-اجنوټے- هغه څوك چې د ښځو خويونه لري- ښځونك.

**جنوټې** :- (ج+نو+ټې)-[اپ-اس-مؤ] - نجلوټې- جینکۍ- وړه جینۍ- جلکۍ.

لاجنـوټې سـرکوندېه
چې حجاب نۀ کاله پلاره (خوشحال)

**جنوري** :- (جَ+نْ+وَ+رِيْ)-[اَنګ:اس-مؤ] - د عیسوي کال رومبۍ میاشت.

**جُنون** :- (جُ+نُوْ+نْ)-[ع-اس-مذ] - (۱) لېونتوب. (۲) غصه- قهر- سوخت

ډېر ډېر فکرونه چې آدم زاد کا
عقل ئې لاړ شي جنون بنیاد کا (خوشحال)

**د جنون زنځیر کښل** :- (اص- د لېونتوب کار نۀ کول.

په هغو د هوس وو ړکي ټولُون نۀ کا
چې له غاړې زنځیر د جنون وکیش (حمید)

**د جنون لار** :- (اص- د لېونتوب یا پاګلتوب لاریارګۍ.

څرنګه دعوې د لېونتوب په ابادۍ کښې کړې
لاره د جـنـون خـو نـیـغه درُومي بیابان پـله (مطیع الله)

**جنوني** :- (جَ+نُوْ+نِي)-[افا-ص] - لېونے- پاګل- خبطي.

**جِنۍ** :- (ج+نۍ)-[اپ-اس-مؤ] - لُور- جلکۍ.

**جُنېـد** :- (جُ+نـې+دْ)-[ع-اس معـرف- مـذ] - یـو صـوفي بـزرګ چـې د بغـداد اوسېدُونکے ؤ.

مسلمان ئې په بزرګۍ په لوېي پوهـ دے
د جُـنـېد لـه حال څۀ پوښتې جهود (خوشحال)

**جَنېوا** :- (جَ+نې+وا)-[ل-اس معرف-مؤ] - د سویټزلېنډ د یوې ښهرېې نوم چې د جمعیت اقوام لوے دفتر پـه کښې ؤ. اوس د بین الاقوامي ریډ کراس صدر دفتر دلته کښې دے.

**جو** :- (جو)-[اپ (سو) کلمه] - جوړ –شاید- ګنې- بس.

**جُوا** :- (جُ+وا)-[اپ (ګن) اس-مؤ] - جواري- پړ- شرط.

**جواب** :- (جَ+وا+بْ)-[ع-اس-مذ-وا-ج: جوابونه] - (۱) ځواب. د سوال تفصیل.

ځکه لاجواب شوم لاجواب راځخه غواړي
هرچې لاجواب شي څوك پرې نه کا اعتراض (علیخان)

(۲) مثال- ثاني. (۳) عوض. (۴) انکار.

**جواب ورکول** :- (اص- (۱) ځواب ورکول- د سوال تفصیل بیانول. ځواب کول.

زما ټول عمر خو تېر شو عشق کښې
په قیامت به څۀ جواب کوم جواب کا (اشرف مفتون)

(۲) د چا راغوښتل- څوك رابلل. (۳) انکاري کېدل- نۀ منل.

**جواب لیکل** :- (اص- (۱) د سوال تفصیل لیکل. (۲) د خط ځواب ورکول. (۳) د انکار نه خبرول.

**جواب موندل** :- (اص- ځواب موندل- د سوال تفصیل حالېدل.

رحمٰن سوال د بوسې کړے دے له یاره
لائې هېڅ ځنې موندلے جواب نۀ دے

**جواب ورکول** :- (اص- بېځي انکاري کېدل.

**جَواب سوال** :- (جواب+سْ+وا+لْ)-[اپ تر-مذ] - سوال ځواب- بحث تکرار.

که بادشاه که امراء زما دپاره
د هر چا سره د دۀ د جواب سوال (خوشحال)

**جـوابګیر** :- (جـواب+ګِي+رْ)-[اپ (ب،خ) اس ص (مـو-وا: جـوابګیره-ج: جوابګېږ)] - جوابي- ځوابګیر- مُنکر- انکاري.

**جواب نامه** :- (جواب+نا+مَه)-[فا-اس-مؤ] - په مقدمه کښې د عوې په لړ کښې جوابي بیان.

**جـوابي** :- (جَ+وا+بِـي)-[اپ-ص] - (۱) پـه جـواب کښـې- ځـوابي. (۲) مُنکر انکاري- جوابګیر- ځوابګیر.

**جوابي کېدل** :- (اص- مُنکرېدل- خبره نه منل.

**جَوات** :- (جَ+وا+تْ)-[اپ (ب،خ)-ص-مذ-مؤ: جواته] جوت- څرګند- ښکاره- ظاهر- بلانګ.

**جَواد** :- (جَ+وا+دْ)-[ع-اس-مذ] - سخي.

په نفاق ئې واړه ورك کړل
که شجاع دي که جواد دي (خوشحال)

**جُوار** :- (جُ+وا+رْ)-[اپ-اس-مذ] - یوه مشهوره غله- جیوار.

**جوار ټوکېدل** :- (اص- جوار ختل- د جوارو نوُغے د مزکې نه راوتل.

**جوار ختل** :- (اص- و______ جوار ټوکېدل.

**جوار سبزي** :- (جُ+وا+رْ+س+بْ+زِي)-[اَف: پ (قاموس)- اس-مؤ] - د پالك په شان یوه سبزي.

**جوارش** :- (جَ+وا+ر+ش)-[معرب- اس-مذ] - یوه مرکبه دوائي چې خوند ئې خوږ وي- د هاضمې او د معدې د طاقت دپاره استعمالېږي.

**جوارګر** :- (جَ+وا+رْ+ك+ر)-[فا-اس فاع-مذ-مؤ-وا- جوارګره-ج: جوارګرې] - جواري کوونکے- شرطي- پړکوونکے.

**جواري** :- (جَ+وا+رِيْ)-[اپ-اس-مؤ] - شرط- پړ.

یار ترې ژغوره علي خانه رقیب ټګ دے
چې پرې بائې نۀ لې د عشق په جوارۍ ګل

**جواري کول** :- (اص- شرط کېدل- پړکېدل.

**جوارے** :- (ج+وا+رَے)-[اپ-اس ص-مذ] - د جوارو ډوډۍ- جوارینه.

**جوارینه** :- (جْ+وا+رِيْ+نه)-[اپ-اس ص-مؤ] - د جوارو ډوډۍ.

**جواز** :- (جَ+وا+زْ)-[ع-اس-مذ] - (۱) جائز کېدنه- رواکېدنه. (۲) اجازت.

بې اخلاصه د یارۍ څۀ جواز نشته
خود پوهېږې بې اودسه نماز نشته (خوشحال)

**جوال** :- (ج+وا+لْ)-[افا-اس-مذ-وا-ج: جوالونه] - غُندے- بورۍ- ګوُنۍ.

فردوسي لري خو بیته له محموده
زۀ لـرم د اورنـګزېب د ذم جوال (خوشحال)

**جوال جوال** :- (اص- ډېر ډېر- په دلودلو- په بوریو- بوریو.

زوے د میر جمله د میر منشي په استقلال
ډېر مهر ئې وکړ د لاسه جوال جوال (خوشحال)

**په جوال کښي ورسره لوېدل** :- (اَف)اِص- دچا سره سره په څهٔ کار کښې په نهٔ زړهٔ شریکېدل.

**جوان** :- (ج+وا+نْ)-[فا-اس-مذ-وا-ج: جوانان]- (۱) ځوان- زلمے- ژنے- نوعمره- نوخېزه. (۲) مضبوط- تکړه- قوتناك- بادر- زړور- (۳) سپاهي- فوځي.

**جوان جهان** :- (اِص- ښهٔ زلمے- پوره زلمیتوب ته رسېدلے.

**جوان عید** :- (اِص- هغه اختر چې میاشت (سپوږمۍ) ئې په یو کم دېرشم ښکاره شوې وي.

**جوان مرد** :- (اِص- ښهٔ ځوان- تُورزن- زړهٔ ور- دلوے حوصلې او همت خاوند.

**جوانۍ** :- (جِ+وا+نْ+ړۍ)-[پ (ظفر)-اس-مؤ]- سپېرکۍ- سپرۍ.

**جوانمردي** :- (جوان+مَ+رْ+دِي)-[فا-اس-مؤ]- تورزني- زړهٔ ورتوب- لویه حوصله او همت- ځوانمردي.

**جُوانوان** :- (جُ+وا+نْ+وا+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- جمامه- تارامیرا.

**جوانه** :- (ج+وا+نَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جوانه ګان]- درې کلینه سخندر.

**جواني** :- (ج+وا+نِيْ)-[فا-اس-مؤ]- ځواني- زلمیتوب- شباب.

**جواني مرګ** :- (اِص- ځواني مرګ- هغه څوك چې په زلمیتوب کښې مړ شي.

**جواهر** :- (جَ+وا+هِ+رْ)-[ع-اس-مذ-ج-وا: جوهر]- قیمتي ګاڼي- لعلونه- ګوهر- یاقوت او داسې نور قیمتي غمي- جواهرات.

**جواهرخانه** :- (جواهر+خا+نَه)-[فا-اس-مؤ-وا-ج: جواهرخانې]- د بادشاه په خزانه کښې هغه ځاے چې جواهرات په کښې کښېښودے شي.

**جُوباټه** :- (جُوْ+با+ټَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- لوپټه- څادر- پټکے.

**جوبړ** :- (جو+ب+ړ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- د غوا، غوایهٔ د مرۍ اوبزانده پسته څرمن.

**جوبل** :- (جو+ب+ل)-[پ-ص]-ژول- زخمي- پرهرژلے. پراژلے

**جوبلول** :- (جو+ب+ل+و+لْ)-[پ-مص مت]- ژوبلول- زخمي کول- پرهر کول.

**جوبلي** :- (جو+بْ+لِي)-[اَنګ-اس-مؤ]- د بادشاه د تخت نشینۍ جشن چې پنځویشت یا پنځوس کاله پس کولے شي.

**جوبلېدل** :- (جو+ب+لې+د+لْ)-[پ-مص لا]- ژوبلېدل- زخمي کېدل- پرهر په کښې کېدل.

**جوبن** :- (جو+بَ+نْ)-[ه-اس-مذ]- (۱) ځواني- شباب- حُسن. (۲) ښائست- ښکلا. (۳) بهار- سپرلے- رونق.

**جوبن تېرېدل** :- (اِص- د عمر پخېدل- د ځوانۍ بهار- شباب کمېدل- د حسن او ښکلا رونق ختمېدل- په مخ او وجود کښې د زړووالي او د بوډاوالي علامې شروع کېدل.

**په جوبن کښي راتلل** :- (اِص- (۱) د ځوانۍ شروع کېدل- په خېز کښې راتلل- د بلوغت نه پس د سینو را اوچتېدل. (۲) د بهار شروع کېدل- د ونو پاڼې ځانګې او ګلونه کول. (۳) د حسن او ښائست کمال ته رسېدل.

**جوبه** :- (جو+بَه)-[پ (ظفر)-اس-مؤ-وا-ج: جوبې]- منډاهي- بازار.

**جُوپ** :- (جُوْ+پ)-[اَف:پ (قاموس)-ص-مذ]- چپ- خاموش- پټه خولهٔ

**جوپه** :- (جو+پَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جوپې]- (۱) کاروان- قافله. (۲) ټولے- ډله. (۳) ځل- وار.

**جوپه کول** :- (اِص- د تجارت دپاره په قافله کښې تلل.

**په یو جوپه تلل** :- (ظفر) اِص- یو وارتلل- په یو ټولي کښې تلل.

**یو جوپه کول** :- (ظفر) اِص- یوه پېره کول- یوځل د کاروان سره تلل.

**جوپه انګړ** :- (جوپه+اَ+نْ+ګَ+ړ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- کاروان سرائې- د قافلې د ایساربدو ځاے.

**جوپه جوپه** :- (جوپه+جو+پَه)-[پ-ص]- ډلې ډلې- ټولي ټولي.

**جوپه جوپه راتلل** :- (اِص- ډلې ډلې راتلل.

**جوپه مشر** :- (جوپه+مَ+ش+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-ص-مذ-وا-ج: جوپه مشران]- د قافلې یا کاروان د سرسړے.

**جوپه وال** :- (جوپه+وا+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس ص-مذ]- کاروانیان په قافله کښې شامل خلق.

**جوت** :- (ج+وَ+تْ)-[پ-ص-مذ-مؤ: جوته]- جوات- څرګند- ښکاره- برڅېره- بلانګ.

**جوت** :- (جو+تْ)-[پ-نا: جفت-ص-مذ (مؤ-وا: جوت)]- جوته- ج: جوتې)]-(۱) زوت- جُفت. (۲) تیار. (۳) اېل کړے- روږدے- عادت. (۴) پېوست- جُخت.

**جوت کول** :- (اِص- (۱) تیارول. (۲) اېلول- روږدے کول- عادت کول. ۳) دغوایانو د جغ (ژغ) د لاندې راوستل- ایوې کول. (۴) په اَس ساز اچول یا ئې په ټانګه یا ګاډي کښې تړل. (۵) څوك په څهٔ کار کښې اخسته کول.

**جوتش** :- (جو+تَ+شْ)-[ه-اس-مذ]- نجوم- دغیب علم.

**جوتشي** :- (جو+تَ+شِي)-[ه-اس-مذ-وا-ج: جوتشیان]- نجومي.

**جَوتک** :- (جَو+تَ+كْ)-[مؤ-وا: جوتکه-ج: جوتکې)]- جُخت- نزدې- څنګ په څنګ.

**جَوتکي** :- (جَو+تَ+کِي)-[اَف:پ (قاموس) اس- مؤ]- (۱) یوبل سره جُخت دوه ستوري. (۲) ټوپونه- لتې.

**جَوتکي وهل** :- (اَف)- اِص- ټوپونه وهل- لتې وهل.

**جوتول** :- (جَو+ت+و+لْ)-[پ-مص مت]- (۱) جوت کول- تیارول. (۲) ایلول- روږدے کول- عادت کول.

**جوتول** :- (ج+وَ+ت+و+لْ)-[پ-مص مت]- څرګندول- ښکاره کول- برڅېره کول- بلنګول.

**جوتونه** :- (جو+ت+و+نه)-[پ-حمص]- (۱) جوت کونه- عادت کونه. (۲) اېلونه- روږدے کونه- عادت کونه.

**جوتونه** :- (ج+وَ+ت+و+نه)-[پ-حمص]- څرګندونه- ښکاره کونه- برڅېره کونه- بلنګونه.

**جتووُنکے** :- (جو+تَ+وُوْ+نْ+کَے)-[پ-اس فاع-مذ-وا-ج: جوتووُنکي- (مؤ: جوتوونکې)]- (۱) جوت کوُونکے- تیاروُونکے- اېلوُونکے- روږدے کوُونکے- عادت کوُونکے.

**جوُونکے** :- (ج+وَ+ت+وُوْ+نْ+کے)-[پ-اس فاع-مذ-وا-ج: جوتووُنکي -(مؤ: جوتوونکې)]- څرګندوُونکے- برڅېره کوُونکے- ښکاره کوُونکے- بلنکوُونکے.

**جُوتۍ** :- (جُوْ+تۍ)-[پ-ه: جوتي-اس-مؤ]- پېزار- پڼې- کپۍ.

**جُوتي** :- (جَوْ+تِيْ)-[پ-اس-مذ-و-ج: جوتیان- (۱) عادت- اموخته. (۲) هغه څاروے چې په قلبه یا ګاډي چلولو عادت وي. (۳) هغه سړے چې په څهٔ

كار كولو آموخته وي.

**جُوتي كول** :- (س) اِص- ټپل- خصي كول- خوټي ټكول.

**جوتے** :- (جو+تَے)-[اَف-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جوتي- جوتيان]- و______ جَوتي.

**جوتېدل** :- (جو+تې+د+لْ)-[پ-مص لا]- (۱) جوت كېدل- تيارېدل. (۲) اېلېدل- روږدېدل- عادت كېدل.

**جوتېدل** :- (ج+وَ+تې+د+لْ)-[پ-مص لا]- څرګندېدل- ښكاره كېدل- برڅېره كېدل- بلنګېدل.

**جوتېدنه** :- (جو+تې+د+نه)-[پ-حمص]- (۱) جوت كېدنه- تيارېدنه- اېلېدنه- روږدېدنه- عادت كېدنه- جوتېدۀ.

**جوتېدنه** :- (ج+وَ+تې+د+نه)-[پ-حمص]- څرګندېدنه- ښكاره كېدنه- برڅېره كېدنه- بلنګېدنه- جوتېدۀ.

**جوتېدُونكے** :- (جو+تې+دُو+ن+كَے)-[پ-مف-مذ-وا-ج: جوتېدُونكي (مؤ: جوتېدُونكې)]- (۲) جوت كېدُونكے- تيارېدونكے. (۲) اېلېدُونكے- روږدے كېدونكے- عادت كېدونكے.

**جتېدُونكے** :- (ج+و+تې+دُو+ن+كے)-[پ-مف-مذ-وا-ج: جوتېدُونكي (مؤ: جوتېدُونكې)]- څرګندېدُونكے- برڅېره كېدُونكے- ښكاره كېدُونكے- بلنګېدونكے.

**جوتېدۀ** :- (جو+تې+دۀ)-[پ-حمص]- و______ جوتېدنه.

**جوټ** :- (جو+ټ)-[پ-اس-مذ-(مؤ-جوټه)]- (۱) د مېښې يو كلن بچے. (۲) چرګوټے- چرګورے.

**جُوټ** :- (جُو+ټْ)-[پ-اس-مذ]- ملګرے- سارے- د برابرۍ سيال.

**جُوټ** :- (جُو+ټْ)-[اَف:پ (قاموس) اس-مذ]- (۱) خفه- غمجن- زهير- تنګ- تربت. (۲) عبث- فضول.

**جُوټ كول** :- (اَف)-اِص- (۱) خفه كول- زهيرول. (۲) ايسارول- معطلول- روستو كول.

**جُوټ كېدل** :- (اَف)- اِص- (۱) خفه كېدل- زهيرېدل. (۲) ايسارېدل- روستوكېدل.

**جُوټ** :- (جُو+ټ)-[اَف:مذ]- د سنرو بُوټے.

**جُوټول** :- (جُو+ټ+و+ل)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]- (۱) خفه كول- زهيرول- تربتول. (۲) ايسارول- روستوكول. (۳) بېكاره كول- عبث كول.

**جُوټونه** :- (جُو+ټ+و+نه)-[اَف-پ (قاموس)-حمص]- (۱) خفه كونه- زهيرونه- تربتونه- دلګير كونه. (۲) ايسارونه- روستو كونه. (۳) بېكاره كونه- عبث كونه.

**جُوټوونكے** :- (جُو+ټ+وُو+ن+كَے)-[اَف:پ-(قاموس)-اس فاع- مذ-وا-ج: جُوټوونكي- مؤ: جوټوونكې)]- (۱) خفه كوونكے. زهيروونكے. (۲) ايساروونكے- رروستوونكے- بېكاره كوونكے- عبث كوونكے.

**جُوټه** :- (جُو+ټَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جُوټې]- (۱) پاتې خوراك- پس خورده.

كه يو ګُوټ شراب د خپلې جوټې راكړې
هر يو څاڅكے به ئې په جام د كوثر نيسم (عليخان)

(۲) سخا پليت- ناپاك.

نور د سرېو كار وزي
جونه د سپيو خوره شي (خوشحال)

(۳) چپه- ټېله- حركت- زانګېدنه.

د بلبلو ترانه كښې د ګلشن ونې وي مستې
پانې څرانګې په جوټو دي ډك غم اورې سرونه (اشرف مفتون)

(۴) نقلي- چې اصل نۀ وي- كوټه.

**جوټه خوړل** :- اِص- (۱) پس خورده خوړل. (۲) سخا څيز خوړل. (۳) چپه يا ټپل خوړل- زانګېدل.

**جوټه كول** :- اِص- پليتول- سخاكول.

**جوټه كېدل** :- اِص- سخاكېدل- پليتېدل.

**جوټه وركول** :- اِص- ټېله وركول- چپور كول- زنګول.

**جُوجن غاړے** :- (جُو+ج+نْ+ړ+غا+ړے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-ص-مذ]- هغه سبرلے چې په غاړه كښې ئې د څرمنې دوه جرجنې يا غوټې شان زانګې.

**جُوجورے** :- (جُو+جُو+رے)ج_اَف:پ (قاموس)-اس-م-وا-ج: جُوجاري]- (۱) د غاړې څوړند غوښه- ججوره. (۲) د چرګ د مرۍ هغه حصه چې دانې وغېره په كښې وي- ججورے.

**جُود** :- (جُو+دْ)-[ع-اس-مذ]- سخاوت- بخښنه- وركړه.

**جُود** :- (جُو+دْ)-[اَف:پ (قاموس) اس-مذ]- يو قسم دربجئې يا جارو بوټے.

**جَودانه** :- (جو+دا+نَه)-[فا-اس-مؤ]- د اوربشې دانه- د اوربشې هومره

صبر مه غواړه له ما د عشق په كار كښې
جودانه صبر په ما باندې لوے غر دے (خوشحال)

**جَودر** :- (جَو+د+ر)-[پ-اس-مذ]- جمدر-ځودر- توره دانه- يوبوټے چې په غنمو كښې كېږي او فصل خرابوي.

دا تاثير د بد پتې دے كه د تخم
چې غنم باندې كرې كېږي جودر (خوشحال)

**جوډيشل** :- (جو+ډي+شَ+لْ)-[اَنګ: اس-مذ]- عدالتي- حاكمانه- فوجداري سره تعلق لرونكے.

**جور** :- (جو+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- د وريځو دم خوړل لكه: ((د اوريځې ښه جود لري)).

**جَور** :- (جَو+رْ)-[ع-اس-مذ]- ظلم- ستم- زورزياتي- ناترسي.

يار چې تل هسے جفاكا
ظلم جور سل بلاكا (خوشحال)

**جَوركول** :- اِص- ظلم كول- زور زياتي كول.

وهومره جور لكه يار چې ماسره كا
ياد مې نۀ دے وهومره جور د اغيار (رحمٰن بابا)

**جُور** :- (جُو+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جُوران]- دوه قسم ته مرغان چې يو د مرغابۍ هومره غټ دي او بل لږ وركوټے رنګ ئې خړ وي.

**جُورا** :- (جُو+را)-[پ-اس معرف]- په سوات كښې د يو كلي نوم.

**جُوراباز** :- (جُورا+با+ز)-[پ-اس-ص-مذ]- يو قسم باز.

**جَوران** :- (جَو+را+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- نوروزي ګل چې د نورو ګلونو نه وړاندې ټوكېږي.

**جُورمل** :- (جُو+ر+م+لْ)-[پ (ظفر)-اس ص-مذ]- ټپ- ډنګر څاروے- اړبې اړبې- جَورمله- كمزورے څاروے.

**جُورمله** :- (جُو+ر+م+له)-[اَف:پ (قاموس)- و______ جورمل.

**جُورنيز** :- (جُو+ر+نې+زْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- يو قسم مارغۀ

**جَوروجفا** :- (جَور+و+جَ+فا)-[فا-اس]- ظلم زياتے.

ما دا ستا جورو جفا دي قبول کړي
ولې نۀ شي د ژړا په ځاے خندا (رحمٰن بابا)

**جُوري** :- (جُوْ+رَي)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- (۱) یو قسم مرغۍ چې جور نیز هم ورته وائي. (۲) د خاؤرو کوزه چې سُوخړې، کشکول یا سنت لري. (۳) حاشیه- څنډه- ژبۍ- غاړه.

**جُوربدل** :- (جُوْ+ري+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص] د زهرو په وینه کښې اثر کول.

**جوړ** :- (جو+ړ)-[اپ-ص-مذ-(مؤ:جوړه)]- (۱) روغ- تندرست- صحت مند. (۲) تیار- ساز.

چې شو قرار په کښې حاصل مجنون د مینې ته
ښکاري په صحرا کښې چېرته جوړ د لیلي پلونه دي (مطیع الله)

(۳) شاید- ګني.

تۀ جوړ هم زما په شان ئې
یو خاموشه مشغولا کړې (اشرف مفتون)

(۳) برابرے- سمے- موافقت.

که شېخان که زاهدان که عالمان دي
له عمل سره جوړ نۀ دے قال د واړو (خوشحال)

(۵) بند- پیوند.

**جوړ راتلل** :- (اص- سمے راتلل- برابرے خوړل- جوړ کول.

**جوړ کول** :- (اص- و________ جوړ راتلل.

څو دې جوړ نۀ دے له صبره سره کړے
تل به ګرځې رنځنے په ځان ناجوړے (حمید)

**جوړ لګول** :- (اص- پیوند لګول- بند په بند برابرول.

**جُوړ** :- (جُوْ+ړْ)-[اَف:پ (قاموس)- اس-مذ]- (۱) په کولمو کښې د باد اواز. (۲) د اوبو یوځاے ته د راپرېوتو اواز.

**جُوړ کول** :- (اَف)-اص- (۱) په کولمو کښې د بادو اواز کول- کولمې ګړېدل. (۲) د اوبو یوځاے ته د راپرېوتو په وخت اواز کول.

**جُوړ کېدل** :- (اَف)-اص- (۱) په کولمو کښې د بادو اواز کېدل- کولمې ګړېدل. (۲) د اوبو یو ځاے نه د راپرېوتو په وخت اواز کېدل.

**جُوړ** :- (جُوْ+ړْ)-[اپ (ب،خ+وز)-[اس-مذ]- د اوبو ډنډ- تالاؤ.

**جوړاب** :- (جو+ړا+بْ)-[اَف:پ (قاموس) ص]- ښکلې ځواني- ښائسته څېره- ښۀ کړۀ وړۀ.

**جُوړانګه** :- (جُو+ړا+نْ+ګه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: جوړانګې]- (۱) چیرړه- شلېدلې جامه. (۲) د کوټې د چچې نه راځوړنده حصه.

**جوړ په جوړ** :- (جو+ړ+په+جو+ړ)-[اپ-ص-مذ]- بند په بند.

**جوړتازه** :- (جو+ړ+تا+زه)-[اپ-اس-مؤ]- ستړي مشي- ښه ګړه.

**جوړتازه کول** :- (اص- ښه ګړه کول- ستړي مشي خوار مشي کول.

**جوړتازه کېدل** :- (ستړي مشي کېدل- ښه ګړه کېدل.

**جوړتوب** :- (جوړ+تو+بْ)-[اپ-اس-مذ]- (۱) جوړوالے- روغ والے- تندرستي. (۲) د دوؤ کسانو په مېنځ کښې صلح- جوړښت- جوړتیا.

**جوړتیا** :- (جوړ+تْ+یا)-[اپ-اس-مؤ]- و________ جوړتوب.

**جوړجاړ** :- (جو+ړْ+جا+ړْ)-[اپ-اس-مذ]جوړه جاړه- جوړجاړے- روغه- صلح- سمون.

**جوړجاړ راتلل** :- (اص- سمے راتلل- جوړه جاړه کېدل.

**جوړجاړے** :- (جو+ړ+جا+ړَے)-[اپ-اس-مذ]- و________ جوړجاړ.

**جُوړجُوړي** :- (جُو+ړْ+جُوْ+ړيَ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- د اوبو غورزېدلو اواز- جړجړائي.

**جُوړخي** :- (جُوْ+ړ+خيَ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- درغن- شاړه- یو قسم کانړے چې دوائي پرې کوټلے شي.

**جوړښت** :- (جو+ړ+ښْ+ت+یا جو+ړَ+خْ+تْ)-[اپ-اس-مذ](۱) سازوالے- جوړتیا- روغ والے- تندرستي.

غم ئې واړه د اشنا د بېلتانۀ دے
د خوشحال څۀ سرکار شو له جوړښت

(۲) سمون- برابري- موافقت. (۳) بناوټ. (۴) فېصله- روغه- جوړه- جوړنه- صلحه.

**جوړ کانړے** :- (جو+ړ+کا+ن+ړے)-[اَف:پ (قاموس)- اس-مذ]- تیږه- کانړے- د روغې جوړے او صلح دپاره قامي ناغه.

**جوړلیک** :- (جو+ړ+لي+کْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج:جوړ لیکونه]صلح نامه.

**جوړموټ** :- (جو+ړ+مو+ټ)-[اپ (سو)-اس ص-مذ]- روغ رموټ- جك جوړ.

**جُوړنګ** :- (جُوْ+ړ+ن+ګْ)-[اَف: پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جُوړنګان] – چړغ- ماندره- چړنګ.

چې ژړو ئې بولي
ژړوګل په جوړنګ پوري (کاکړي غاړه)

**جوړنه** :- (جو+ړ+نه)-[اپ-اس-مذ]- صحت- تندرستي- روغ والے.

**جُوړوب** :- (جُوْ+ړُوْ+بْ)-[اپ-اس صو-مذ]- په اوبو کښې د سخت څیز پرېوتو اواز- جړب- جړومب.

**جُوړوبے** :- (جُوْ+ړو+بے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جوړوبي]- جړوبې- د اوبو د راپورېوتو اواز- زاوۀ- آبشار.

**جوړول** :- (جو+ړ+و+لْ)-[اپ-مص مت]- (۱) سازول- رغول. (۲) پېدا کول.

چې جوړ کړل ارمانونه د وصال زړۀ کښې غوبل
لوخړې مې د خُلې نه د آهونو سره څي (مطیع الله قریشي)

(۳) د چا په مېنځ کښې روغه جوړه راوستل.(۴) برابرول- شروع کول. (۵) صحت ورکول- تندرست کول.

**جوړونګ** :- (جو+ړ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)- حمص] و______ جوړونه.

**جوړونه** :- (جو+ړ+و+نه)-[اپ-حمص]- (۱) سازونه- رغونه. (۲) پېدا کونه. (۳) دچا په مېنځ کښې روغه جوړه راوستنه- صلح کونه. (۴) شروع کونه- برابرونه. (۵) صحت ورکونه- تندرست کونه.

**جوړوُونکے** :- (جو+ړ+وُو+نْ+کے)-اپ-اس فاع-مذ-وا-ج-جوړوُونکي- (مؤ: جووُونکې)- (۱) سازوُونکے- رغوُونکے. (۲) پېدا کوُونکے- (۳) د چا په مېنځ کښې روغ جوړه راوستوُونکے. (۴) برابروُونکے. (۵) صحت ورکوُونکے- تندرستوُونکے.

**جوړه** :- (جو+ړه)-[اپ-اس-مؤ]- (۱) جوړې- جفت. (۲) قلبه- ایوې. (۳) جامه- پوشاك- د ناوې لباس.

نور خوبان دې د کلګون لباس طلب کړي
ستا خو سره د علي خان په خون جوړه ده

**جوړه استول** :- (اص- جوړه لېږل- د چنغول د کور نه د چنغلې دپاره د اختر شوقدر په ورځ جامې لېږل.

**جوړه جوړول** :- (اص- جامه پوشاك جوړول- لباس جوړول- جوړه ګنډل. (۲) د ناوې دپاره جامې تيارول.

**جوړه سکښتل** :- (اص- (۱) جوړه سکڼل- جامې د چا د ناپ مطابق په قينچۍ کټ کول. (۲) د ناوې د جوړې جوړولو دستوره کول.

**جوړه سکڼل** :- (اص- و_____ جوړه سکښتل.

**جوړه قبلول** :- (اص- د جينۍ د کوروالو د چنغول د کورنه راغلې جامې اخستل.

**جوړه کول** :- (اص- (۱) جوړې کول- جفتول. (۲) قلبه اخستل. (۳) جامه پوشاك جوړول. (۴) يوځاے کول.

**جوړه کېدل** :- (اص- (۱) جوړې کېدل- جفتېدل. (۲) قلبه اخستلے کېدل. (۳) جامه، پوشاك جوړېدل. (۴) يوځاے کېدل.

**جوړه ګنډل** :- (اص- و_____ جوړه جوړول.

**جوړه لېږل** :- (اص- وا_____ جوړه استول.

**جوړه وړل** :- (اص- د چنغول د کور نه د ناوې کور ته جامې وړل.

**جوړه** :- (جو+رَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جوړې]- (۱) صلح- راضي نامه روغه. (۲) سازه- تياره.

ولې زما غليو کتو حال درته نۀ ووې
جوړه دې په مخ د خولو لاړه ده کړه وړه (مطيع الله قريشي)

**جوړه کول** :- (اص- صلح کول- روغه کول- راضي نامه کول.

**جوړه کېدل** :- (اص- صلح کېدل- روغه کېدل- راضي نامه کېدل.

**جُوړه** :- (جُوْ+رَه)-[پ (ګن)-ه: جُوړا-اس-مؤ]- د ښځو د سرکو نخۍ.

**جوړه جاړه** :- (جو+ړه+جا+ړه)-[پ-اس-مؤ]- و_____ جوړجاړ.

**جوړۍ** :- (جو+ړۍ)-[پ-ه: جوړي-اس-مؤ]- جوړه- دوه ملګري.

**جُوړۍ** :- (جُوْ+ړۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- (۱) دماشوم شوخي يا چوسي. (۲) د ناسُنته کس د چوسي پسته غوښه. (۳) جړوبې- زاوۀ آبشار.

**جوړې** :- (جو+ړې)-[پ-کلمه]- شايد- ګني- ګوندې- جوړ.دا چې
قاصد څخه دے جوړې جانان پاتې شو (حمزه شنواري)

**جوړيدار** :- (جو+ړيْ+دا+رْ)-[پ-اس-مذ-وا-ج:جوړيداران (مؤ-وا: جوړيداره-ج: جوړيدارې)]- جوړيوال- ملګرے.

**جوړېدل** :- (جو+ړې+د+لْ)-[پ-مص لا]- (۱) تيارېدل- ابادېدل- رغېدل- سازېدل. (۲) روانېدوته- تکل کول.

جوړ شوم پېښور ته چې راواخست جمدر
ونړل سرو نازه پـــه دوه څله مکرر (خوشحال)

(۳) صحت موندل- روغېدل. (۴) روغه جوړه کېدل- صلح کېدل. (۵) په يوه خبره راضي کېدل.

**جُوړېدل** :- (جُوْ+ړې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص لا]- خېتېه کنبې جړ جړ اواز کېدل- دجُلابو يا دستونو په وخت د خېټې اواز.

**جوړېدنګ** :- (جو+ړې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف: پ (قاموس)- حمص)]- و___ جوړېدنه.

**جُوړېدنګ** :- (جُوْ+ړې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)- حمص]- و_____ جُوړېدنه.

**جوړېدنه** :- (جو+ړې+د+نه)-[پ-حمص]- (۱) جوړېدنګ- تيارېدنه- رغېدنه- ابادېدنه. (۲) روانېدو ته تکل کونه. (۳) صحت موندنه- روغېدنه. (۴) روغه جوړه کېدنه- صلح کېدنه. (۵) په يوه خبره راضي کېدنه.

**جُوړېدنه** :- (جُوْ+ړې+د+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]جوړېدنګ- په خېټه کنبې د جړجړ اواز پيدا کېدنه- د جُلابو يا دستونو په وخت د خېټې اواز کېدنه.

**جوړېدونکے** :- (جو+ړې+دُو+نْ+کے)-[پ-مف-مذ-وا-ج: جوړېدونکي (مؤ: جوړېدونکې)]- (۱) تيارېدُونکے- رغېدُونکے- ابادېدُونکے. (۲) روانېدوته تکل کوُونکے. (۳) صحت موندُونکے- روغېدُونکے. (۴) په يوه خبره راضي کېدُونکے.

**جُوړېدُونکے** :- (جُوْ+ړې+دُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس) مف-مذ]- د جلابو يا دستونو په وخت په خېټه کنبې د جړجړ اواز کېدُونکے.

**جوړيوال** :- (جو+ړي+وا+لْ)-[پ (ګن)-اس-مذ-وا-ج: جوړيوالان]- زمیندار- د قلبې خاوند.

**جوړيوال** :- (جو+ړي+وا+لْ)-[پ-اس-مذ-وا-ج: جوړيوالان-(مؤ-وا: جوړيواله-ج: جوړيوالې)]- و_____ جوړيدار.

**جَوز** :- (جَو+زْ)-[ع-اس-مذ]- غوز- اکوړ.

**جوزا** :- (جَ+زا)-[ع-اس-مؤ]- د جبتې هار مياشت.

يو څو ورځې شګفته شي
زر فـنـا شـي پـه جوزا (خوشحال)

**جَوزګيره** :- (جَ+وَ+زْ+ګيْ+رَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: جوزګېرې]- د تسپو څوندے.

**جَوزه** :- (جَو+زَه)-[پ (ظفر) اس-مؤ]- جوز- جائفل.

**جَوزي مردکه** :- (جَو+زيْ+مَ+رْ+د+که)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- يو قسم سُور شين غونډ کانړے چې ماشومان لوبې پرې کوي.

**جَوس** :- (جَ+وَ+سْ)-[پ-اسمذ-وا-ج: جوسُونه]- غولے- انګړ.

د جهان خوشي همه د هغۀ کس ده
چې ميشته ئې د محبوبې په جوس ده (خوشحال)

**جُوس** :-(جُوْ+س)-[انګ:اس-مذ]رَس- شربت- د مېوې يا سبزۍ نه نچوړ شوې اوبۀ.

**جُوس ايستل** :- (اص- رس ايستل- د مېوې يا سبزۍ نه اوبۀ نچوړول.

**جَوسر** :- (جَو+س+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- پېوست- جخت.

**جَوسرول** :- (جَو+س+ر+و+ل)-[اَف:پ (قاموس)-مص لا]- پېوست کول- جُختول.

**جَوسرونه** :- (جَو+س+ر+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] پېوست کونه- جُختونه.

**جَوسروُونکے** :- (جَو+س+رَ+وُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-فاع-مذ-وا-ج: جوسروُونکي- (مؤك جَوسروُونکې)]- پېوست کوُونکے- جُختوُونکے.

**جَوسرېدل** :- (جَو+س+رې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- پېوست کېدنه- جُختېدنه.

**جَوسرېدُونکے** :- (جَو+س+رې+دُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس) مف-مذ-وا-ج: جوسرېدُونکي (مؤ: جَوسرېدُونکې)]- پېوست کېدُونکے- جُختېدُونکے.

**جَوسه** :- (جَو+سَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: جوسې]- په دېوال کنبې لګېدلے المارۍ.

**جُوسه** :- (جُوْ+سَه)-[پ-ع:جُثه-اس-مؤ-وا-ج: جُوسې]- (۱) څېره- مخ

دا جوسه مې شوه له ډېره غمه زېړه
لـه رجـيـم سـره مدام کوم جګړه (علي خان)

(۲) بدن- جسم.

**جوش** :- (جو+شْ)-[فا-اس-مذ]- (۱) يش- خُټکېدنه- د اوبو داسې ګرمېدنه چې د خپلې سطحې نه پورته شي. (۲) ولوله. جذبه. شوق.

کـجاوه وه د لـيلې که برېوکي وه
جوش و شوق مې کړو نظر ورسره ګډ (حمزه شنواري)

(۳) ګرمي- تيزي- زور. (۴) شهوت- مستي. (۵) سوخت- قهر-غصه. (۶) لېونتوب- جنون.

**جوش کول** :- (اص- (۱) يشېدل- خُټکېدل.

په کښې اچوه چې ښې اوبۀ په جوش کا
بول ناس نبات په کښې مثقال مثقال (خوشحال)

(۲) شوق پورته کېدل- په جذبه کښې راتلل. (۳) غصه کېدل- قهرېدل. (۳) په مستۍ کښې راتلل- شهوت پورته کېدل.

**جوشانده** :- (جو+شا+نْ+دَه)-[فا-اس-مؤ]- د يشېدلي دارُو اوبۀ چې په نزله يا نورو مرضونو کښې بيمار ته ورکولے شي.

**جــوش خــروش** :- (جــوش+خَ+رو+شْ)-[فـا-ص-مـذ]- (۱) غصــه- قهــر. (۲) جذبه- ولوله- شوق.

**جوشي** :- (جو+شيْ)-[اپ-اس ص]- (۱) غصه ناك- قهرجن- غصه شوے. (۲) يو قسم وريژې. (۳) د باټانو يو ذات.

**جوغ** :- (جُوْ+غْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-جغ ژغ.

**جوغدي** :-(جو+غْ+دي)-[اَف:پ(قاموس)-ص](۱) اېل- روږدے. (۲) وريت شوے.

**جوغدي کول** :- (اَف)-اص- (۱) اېل کول- روږدے کول. (۲) وريتول- سوځول.

**جوغدي کېدل** :- (اَف)- (۱) اېل کېدل- روږدېدل. (۲) وريتېدل- ل.

**جُــوغرے** :- (جُــوْ+غْ+رے)-[اَف:پ (قــاموس)-اس-مــذ-وا-ج:جُــوغري] ورکوټے سُورے.

**جُوغړ** :- (جُوْ+غَ+ړْ)-[اپ (سو)-اس-مذ]- جُغړ- شلېدلے کټ.

**جُوغړے** :- (جُوْ+غْ+ړَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- ژوره مزکه- کنده- ډوغن.

**جوغاش** :- (جو+غا+ش)-[اپ (ب،خ)-[اس-مذ-وا]- دوزخ- دغش.

**جُوغه** :- (جُوْ+غَـه)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مؤ-وا-ج:جوغې]- (۱) تـاج چيغـه- پَرپره- جَغه. (۲) چوغه.

**جُوغېـدل** :- (جُـوْ+غې+د+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-مـص لا] پـه څـۀ کـار کښـې بوختېدل.

**جُوغېدلي** :- (جُـوْ+غې+دَ+لے)-[اَف:پ (قـاموس)-مـف-مـذ-وا-ج: جوغېـدلي- (مؤ: جوغېدلې)]- په څۀ کار کښې بوخت شوے.

**جُوغېدنګ** :- (جُوْ+غې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس-حمص]- و- جُوغېدنه.

**جُوغېدنه** :- (جُوْ+غې+د+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- جُوغېدنګ په څۀ کار کښې بوختېدنه- جُوغېدۀ.

**جُوغېـدُونکے** :- (جُـوْ+غې+دُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-فـاع-مـذ-وا-ج: جُوغېدُونکي (مؤ:جوغېدُونکې)]- په څۀ کار کښې بوختېدُونکے.

**جُوغېده** :- (جُوْ+غې+دۀ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- و______ جُوغېدنه

**جُوک** :- (جُوْ+کْ)-[اپ-اس-مذ]- (۱) وزن- تول. (۲) د ګوړې په ګانۍ کښې د اور بلولو کار.

**جــوکر** :- (جــو+کَ+رْ)-[اَنـګ:اس-مـذ-وا-ج: جـوکران (مـؤ-وا: جـوکره-ج: جوکرې)]- (۱) ټوقمار- ټقالي- نخرے پېښنے کوونکے. (۲) د تـاش پـه تصويري پاڼو کښې يوه پاڼه.

**جُوکل** :- (جُوْ+کْ+لْ)-[اپ-مص مت]- تلل وزن کول- تول کول.

**جُوکلے** :- (جُوْ+کَ+لے)-[اپ-مف-مذ]- تللے- وزن کړے- د تول نه وتلے

**جُوکمار** :- (جُوْ+کْ+ما+رْ)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: جُوکماران (مؤ-وا: جُوکماره-ج: وکمارې)]- په ګانۍ پسې اورکوُونکے- ګانۍ کښې اور بلوُونکے.

**جُوکوُنکـے** :- (جُوْ+کُـوْ+نْ+کے)-[اپ-فـاع-مـذ-وا-ج: جوکُـونکي (مـؤ: جوکوُنکې)]- وزن کوُونکے- تلُونکے- تول کوُونکے.

**جوکه** :- (جو+کَه)-[اپ (يو) اس-مؤ-وا-ج: جوکې]- ژورې- جورې.

**جُوکېدل** :- (جُوْ+کې+د+لْ)-[اپ-مص لا]- تللے کېدل- وزن کېدل.

**جوګ** :- (جو+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- ځوز- يو قسم ازغن بوټے.

**جوګ** :- (جو+ګْ)-[ه-اس-مذ]- جادو- کوډې.

**جوګ پخول** :- (اص- د جادو د پخولو دپاره رياضت کول- چله ايستل

**جوګړ** :- (جو+ګ+ړْ)-[اپ-اس-مذ]- جونګړه- جونګړې- جوګړه- څپر- سوله- ساله- خوُله.

**جُوګړه** :- (جُوْ+ګْ+ړَه)-[اپ (ګن)-اس-مؤ-وا-ج: جوګړې]- و______ جُوګړ.

**جوګه** :- (جو+ګَه)-[اپ-ص]- لائق- موزون- مناسب.

تهذيب او تمدن د ځان ته خپل کړه
ورته جوګه په همت ځان ته عمل کړه (رب نواز اورکزے)

**جوګه پاتې کېدل** :- (اص- قابل پاتې کېدل- لائق پاتے کېدل.

د رواج د زولـنـو د مـاتـولـو
جوګه نۀ يم پاتې شوے په ژوندون کښې (نظير درانے)

**جوګه کول** :- (اص- لائق کول- قابل کول- موزون کول.

**جوګه کېدل** :- (اص- لائق کېدل- قابل کېدل- موزونه کېدل.

**جـــوګي** :- (جـــو+ګي)-[ه-اس-مـــذ-وا-ج: جوګيـــان]- (۱) جـــادوګر. (۲) سادهو- هغه فقير چې دنيا ته ئې شا کړې وي.

پردېسي حېران پرېشان له خلقه تښتي
زۀ پـه تا پسې جوګي شوم کـه مې وينې (خوشحال)

د جوګيانو د ګروه ته
په تعظيم او په تسليم (خوشحال)

**جَـوګير** :- (جـو+ګي+رْ)-[اپ (ب، خ)- اس ص-مـذ-(مـؤ-وا: جـوګيره-ج: جوګيرې)]- اغېړلے- هغه څوك چې ډوډۍ ئې نۀ هضم کېږي- چې خېټه ئې د ډېر خوراك له کبله خرابه وي.

**جـــولا** :- (جـــو+لا)-[اپ-ه: جولاهـــا- اس-مـــذ-وا-ج: جولاګـــان]- (۱) د کپـــړې اوډُونکے- د کپړې د اوبدلو کارکوُونکے- پاولي- پاولے.

که چمپار دے که نداف دے که جولا دے
تـر اصيـل سـړي ئـې کـښنوي برزد (خوشحال)

(۲) غنې يو چينجے شان چې جال جوړوي- جولاګے. (۳) ناپوهه- کم عقل.

**جولا جال** :- (جولا+جا+لْ)-[اپ-اس-مذ]- د غنې جال.

محبت دے جولا جال راته زنځير کړو
بالادست دے هر ضعيف په ما ضعيف (حميد)

**جولا ګاډے** :- (جولا+ګا+ډَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جولاګاډي]- سائيکل- بائيسيکل.

**جولاګے** :- (جو+لا+ګے)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: جولاګيان]- جولا- غنې.

**جولان** :- (جو+لا+نْ)-[فا-اس-مذ]- د اسپې زغل- منډه.

د غمزې سمند ئې جوړ کړو و جولان ته
ګوره بيا به ئې په چا باندې مهميز شي (خوشحال)

**جولائي** :- (جو+لا+ئيْ)-[اَنګ:اس-مؤ]- د عيسوي کال اوومه مياشت.

**جَوله** :- (جَو+لَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: جولې]- ځبره.

**جوله** :- (جو+لَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- (۱) جَل- د تندې مرض. (۲) فالج- ګوزن. (۳) سپېرګي.

**جولې** :- (جو+لې)-[پ-اس-مؤ]- (۱) ځولې- لمن. (۲) يو خاص قسم کڅوړه- فوځي تبله.

**جولې اچول** :- (اص- (۱) جولې جوړول- جولې غوړول- جولې ويړول- جولې کول. (۲) کڅوړه ځنګ ته کول

**جولې جوړول** :- (اص- جولې غوړول- جولې ويړول- جولې اچول.

جوړه مې جولې کړه د دنيا او د عقبې نه
پس له دې مې وار دے چې رښتيا را ټولوم (حمزه شنواري)

**جولې غوړول** :- (اص- و______ جولې اچول.

**جولې کول** :- (اص- و______ جولې اچول.

ورو ورو چې اشنا شومه زۀ ستا د التقا ته
نن مې کړې اشنا ورته جولې د اسوېلو لمنې (حمزه شنواري)

**جولې ويړول** :- (اص- و______ جولې اچول.

**جولې** :- (جو+لې)-[پ-(سو)-اس-مؤ]- د اَنډې نيمه- د ښتې څلورمه.

**جُوم** :- (جُوْ+مْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جُوموُونه- جومان]- چم- هغه ختېه چې په يوځل ښېلچې يا يوم کښې را اخستے شي.

**جُومبړ** :- (جُوْ+ب+ړْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ (مؤ-وا:جومبړه-ج: جُومبړې)]- (۱) هغه سړے چې ارتې ښېرتې جامې ئې اغوستې وي. (۲) هغه غوايائي چې د مرى لاندې ځرمن ئې را اويزانده وي.

**جُومېق** :- (جُوْ+مْ+پَ+قْ)-[پ- (سو)-اس-مذ-وا(مؤ-وا: جومېقه)]- جُومېك- ځومبك- ټل.

**جُومېك** :- (جُوْ+مْ+پَ+كْ)-[پ-اس-مذ]- و______ جُومېق.

**جُوميا** :- (جُوْ+مْ+يا)-[پ (ب،خ)-اس-مذ]- جمامه.

**جُون** :- (جُوْ+نْ)-[اَنګ: اس-مذ]- د عيسوي کال شپږمه مياشت.

**جونپور** :- (جو+نْ+پُوْ+رْ)-[اس- معرف-مذ]- په هندوستان کښې د يو ځاے نوم.

**جوند** :- (ج+و+نْ+دْ)-[پ-اس-مذ]- ژوند.

**جوندون** :- (ج+د+ن+دُوْ+نْ)-[پ-اس-مذ]- ژوندون.

**جوندے**:- (ج+د+ن+دَ+ے)-[پ-اس-مذ]- ژوندے.

**جُونډے** :- (جُوْ+نْ+ډَ+ے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: جُونډي- جونډيان]- ځونډے- د ګل ځونډے.

**جُونکۍ** :- (جُوْ+نْ+کۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- جلکۍ- جينکۍ- جنګۍ- جينۍ.

**جُونګ** :- (جُوْ+نْ+ګْ)-[پ-اس-مذ-(مؤ-وا:جونګه-ج: جونګې)]- (۱) د اوښ دوه کلن بچے- جونګے.

سپين مخ په کښې پټ کړه توري زلفې تار په تار کړه
واچوه زما د زړۀ جونګې ته مهاروونه (مياجناب کاکاخېل)

(۲) نوټ بك- هغه کتاب چې يادګيرنې دپاره ځۀ په کښې ليکلے شي.

**جونګړا** :- (جو+نْ+ګْ+ړا)-[اَف:پ (قاموس)-ص]- سست- ناراست.

**جُونګړه** :- (جُوْ+نْ+ګْ+ړه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: جونګړې]- جوګړه- جُوګړ- جونګړې- ځپر- ساله- خونه.

د شمشاد د صنوبرونو کښې زما جونګړه ګېره
د بلبلو ترانې کړې رانه خپله نغمه هېره (مفتون)

**جونګړه جوړول** :- (اص- ځپرتيارول- داستوګنې دپاره ځاے جوړول.

ستا دمحفل نه جوړولے شم جونګړه لړې
خو يم مئين کله مې زړۀ په ويرانه پرېوزي (مطيع الله قريشي)

**جونګړې** :- (جو+نْ+ګْ+ړي)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- د جونګړه اسم تصغير- ورکوټے ځپر.

**جُونګوړا** :- (جُوْ+نْ+ګُوْ+نْ+ړا)-[اَف:پ (قاموس) اس ص-مذ]- بې تهذيبه سړے- بدخويه بنيادم.

**جونګه** :- (جو+نْ+ګه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج:جونګې]- د اوښ دوه کلنه بچې- جونګۍ.

**جُونګه** :- (جُوْ+نْ+ګه)-[پ-اس-مؤ]- جُونګه- چونګۍ- په سورا کښې ورکړے شوے زيات ځيز.

**جونګۍ** :- (جو+نْ+ګۍ)-[پ-اس-مؤ]- و______ جونګه.

**جونګے** :- (جو+نْ+ګَے)-[پ-اس-مذ-وا-ج:جونګيان (مؤ: جونګۍ)]- و______ جونګ.

**جُونه** :- (جُوْ+نَه)-[پ-اس-مؤ-ج]- جلې- جينکۍ- جلکۍ- جونې-

چې هېڅ بها زلميو څخه نشته
جُونه نۀ دي سکه ګنجونه د قارون دي (رحمٰن بابا)

**جُونير** :- (جُوْ+نْ+يَ+رْ)-[اَنګ-ص]- کشر- لاندې- ادنٰي.

**جُووړ** :- (جُوْ+و+ړْ)-[پ-ه-جوړ-اس-مذ-وا-ج: جووړونه]- حوض- د اوبو تالاؤ.

**جوول** :- (جو+و+لْ)-[پ-مص مص]- ژوول.

**جووه** :- (جو+وَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: جووې]- ويالۀ- لښتے- نالې.

**جَوهر** :- (جَوْ+هَ+رْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) خُوبي- صفت- خاصيت- ښه والے- کمال.

عاشقي منافقي شي په هُنر
آئينه توره تبې شي په هُنر (حميد)

(۲) قيمتي کاڼے- غمے.

دا جوهرې يك دانه دي
که توئ واورې په لاله دي (عليخان)

**جَوهري** :- (جَو+هَ+ريْ)-[ع-اس-مذ]- جوهر خرځُونکے.

**جوهړه** :- (جو+هَ+ړه)-[پ (ظفر)-اس-مؤ]- اګونځې-تاؤ.

**جوئي** :- (جو+ئي)-[پ-تر-فا:جو-اس-مذ]- ويالۀ- درياب- رود.

سروه د لښتې مې زړۀ هېره شي دلبره
تاته چې روان د اوښکو جوئ ووينم زۀ (عليخان)

**جويړ** :- (ج+وي+ړْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- دګنده اوبو ډنډ.

**جَوينه** :- (ج+وي+نَه)-[پ-فا-جوين+اس-مؤ]- د اوربشو ډوډۍ.

کله منت اخلې د يوې ګېډې دپاره
هرچې همت ناك دي که په کور لرې جوينه (خوشحال)

**جَه** :- (جَ+هْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- (۱) اتفاق. (۲) د ځاروي اړي کونه.

**جه کېدل** :- (اص- (۱) اړي کول- نۀ تلل- ضد کول. (۲) د بدل اخستو دپاره چاته ځاؤ کښې کښېناستل. (۳) په لوبه کښې مير کښېناستل او ډېره

ګټه کول. (۴) رندېدل- ټينګېدل- په څۀ خبره ضد کول.

**جهاد** :- (جِ+ها+دْ)-[ع-اس-مذ] - (۱) د کافرو سره جنګ- غزا. (۲) مقابله.

دا مې وينه د ملت د اشنا نۀ ده
امانته سرمايه ده د جهاد (حمزه شنواري)

همېشه ژوندون که غواړې درته وايم
همېشه کوه د نفس سره جهاد (خوشحال)

**جَهاز** :- (جَ+ها+زْ)-[ع-اس-مذ-وا-ج: جهازونه] - (۱) د کور مال اسباب (۲) الوتکه. (۳) د اوبو لويه مشيني کشتۍ.

اضطراب و حرص مې کړې د زړۀ نه لرې
قناعت قوي لنګر د دې جهاز را (حميد)

د حيا د بحر دُر ئې موندۀ نۀ شي
که د صبر جهازونه کړم چندان ډوب (حميد)

**جهاز الوتل**:- (اص- جهاز پورته کېدل- جهاز د مزکې نه اسمان ته اوچتېدل- هسکېدل.

**جهاز پرېوتل** :- (اص- جهاز غورزېدل.

**جهاز ډوبېدل** :- (اص- جهاز په سمندر کښې غرقېدل.

نيستي واړه د هستۍ په دنبال ګرځي
نۀ ډوبېږي په اوبو کښې تش جهاز (رحمٰن بابا)

**جهاز ګوزېدل/ګوځېدل** :- (اص- جهاز شورېدل- جهاز تلل.

بېړۍ ګرځي په بېله کښې
په قلزم ګرځي جهاز (خوشحال)

**جهازران** :- (جَهاز+را+نْ)-[فا-تر-اس ص-مذ-مؤ: جهازرانه)] - جهاز چلوونکے.

**جَهالت** :- (جَ+ها+لَ+تْ)-[ع-اس-مذ] - بې وقوفي- کم عقلي- ناپوهي بې علمي- اَن پړه توب.

يو غلفت بل جهالت درېم شهوت دے
د خوشحال د ځان بلا دي هم دا درې

**جهان** :- (ج+ها+نْ)-[فا-اس-مذ-وا-ج: جهازونه] - عالم- ټوله دنيا- ګرده نړۍ- ډېر خلق.

يو نفس د خدا ے په يادو اولي تر دے
نۀ د درست جهان دولت په دا دنيا (رحمٰن بابا)

**جهان تنګول** :- (اص- (۱) خلق تنګول. (۲) په ځان دنيا را لنډول- په ګوټ کښې کښېناستل- او د خلقو سره تعلق پرېښول.

کښني په خلوت کښې شېخه سُود ئې راته وايه
ولې په خپل ځان دا هسې ارت جهان تنګ کړې
(خوشحال)

**جهان شندل** :- (اص- ټوله دنيا پرې ورکول- هرڅۀ پرې دوا کول.

يوسفَ د زمانې دے درست جهان پردو شندلے
دا يو جهان لاپرېږده چې په دوه جهان پېرېږي (خوشحال)

**په جهان پاتې کېدل** :- (اص- په دنيا کښې اثر پاتې کېدل- په دنيا کښې نوم پاتے کېدل.

چې ئې نوم په جهان پاتې شي د نېکو
هغه زوے دے په جهان کښې لايموت (خوشحال)

**په جهان خورول** :- (اص- په دنيا کښې مشهورول.

د معشوقې نوم عاشق په جهان خور کا
د شيريني بازار تود دے له پېروېز (خوشحال)

**د جهان خبرې** :- (اص- (۱) ډېرې خبرې. (۲) د خلقو خبرې.

ستا حُسن چې پاک وي او زما مينه هم پاکه وي
خلق د هرڅۀ وائي د جهان خبرې څۀ معنٰي (مطيع الله قريشي)

**د جهان ناروا** :- (اص- ډېر بد معاش زيات خود سر. (۲) بې کچې ډېرې بدې خبرې- ډېر ناکاره.

د هرچا چې شي مفتي نفس و هوا
ناروا شي د جهان ورته روا (حميد)

**جهان افروز** :- (جهان+اَ+فْ+رو+زْ)-[فا-اس ص-مذ] - جهان رڼا کوُونکے- په جهان رڼا خوروُونکے.

ساقي را پاڅه بيا نوروز راغے
ګل په ګلشن کښې جهان افروز راغے
(خوشحال)

**جهان خان** :- (جَهان+خا+نْ)-[پ-اس معرفه] - د پښتنو يو نوم.

**جهانداري** :- (جهان+دا+رِيْ)-[پ (ګن)- اس-مؤ] - دنياداري- د دنيا تعلق- د دنيا راشه درشه.

**جهان ديده** :- (جهان+دي+دَه)-[فا-اس ص-مذ] - (۱) تجربه کار- د دنيا د ګرمو نرمو تېر. (۲) جهان ګشته- د دنيا سېلانے.

**جهان ګشته** :- (جَهان+ګَ+شْ+تَه)-[فا-اس ص] - و..... جهان ديده.

**جَهانګير** :- (جَ+ها+نْ+ګي+رْ)-[فا-اس معرفه-مذ] - (۱) دنيا فتح کوُونکے- د دنيا اخستوونکے. (۲) يو مغل بادشاه.

**جَه جَه** :- (جَه+جَ+هْ)-[پ-اس-صو-مؤ] - د ځنارو د شړلو اواز.

**جَهل** :- (جَ+هْ+لْ)-[ع-اس-مذ] - ناپوهي- بې عملي- کم عقل توب.

چې د عشق په جهل ځان وژني ناصحَ
کاش که زۀ عبدالحميد هغه پښتون شم

**جِهلم** :- (جِ+هْ+لَ+مْ)-[اس معرفه] - په پنجاب کښې يو نهر.

**جهل مرکب** :- (جهل+مُ+رَ+کْ+کَ+بْ)-[ع-اس ص-مذ] - دوې ناداني يوځاے کېدل- يعني يو خو ناپوهي او بل ځان ته څۀ وئيل.

مستهره فحاشي لره سبب شوې ولې
مسجد په مقابل کښې خوبن په کلب شوې ولې
ډګرې لرې د بي اے خودا وائي حمزه
اخته په داسې جهل مرکب شوې ولې حمزه شنواري

**جَهنم** :- (جَ+هَ+نْ+نَ+مْ)-[ع-اس-مذ] - جحيم- دوزخ- جوغاش- دوغش.

ځومره زاهدان په کاوشونو مبتلا کړې
خوب د جنت ويني جهنم ورته دنيا کړې (حمزه شنواري)

**جَهود** :- (جَ+هُو+دْ)-[ع-اس-مذ] - يهود.

د قدم مې په مذهب د عشق عمل دے
مسلمان خداے لره ورشم که جهود (حميد)

**جۍ** :- (جۍ)[پ-اس-مؤ]-ژۍ.

**جِي** :- (جيْ)-[ه-کلمه] - (۱) اَو- هو- هنْ. (۲) جناب صاحب. (۳) ټيک- درست. (۴) ضرور- بېشکه. (۵) د تعظيم کلمه چې د يو اسم په اخر کښې لګولے شي- لکه: باباجي- کاکاجي- ماماجي.

**ځے** :- (ځے)-[پ-اس-مذ] - ژے.

**جے** :- (جے)-[ه-اس] - بَرے- ګټه.

**جې** :- (جې)-[پ (مو)-اس صو] - ښې- اوبن د کښېنولو اواز.

**جيار** :- (جْ+يا+رْ)-[پ (ب،خ)اس صو] - ځار- قربان- جار.

**جیـالوجي** :- (ج+یـا+لو+جي)-[اَنـګ:اس]- د مزکـې د طبقـاتو علـم- علـم طبقات الارض.

**جـي او سـي** :- (جي+او+سـيُ)-[انـګ:اس-مـذ]- د جنـرل افیسـر کمانـډنګ مخفف- یوه فوځي عهده.

**جـي پـي او** :- (جي+پي+او)-[اَنـګ:اس]- د جنـرل پوسـټ افـس مخفـف. لویـه ډاکخانه.

**جېب** :- (جي+بُ)-[اپ-اس-مـذ-وا-ج: جېبُونـه]- قمـیص- کـوټ- واسـکټ یـا پتلون کښې د ځیزونو د کښېښودو دپاره یو بوجګۍ. شان- جب- جوب.

د چا نه پن، چانه کتاب، چانه رومال تلےؤ

زما د جېب نه یو غزل په ډېر کمال تلےؤ (مطیع الله قریشي)

**جېب تشېدل** :- (اص- جېب خالي کېدل- زیات خرڅ کېدل.

**جېب ته اچول** :- (اص- جېب ته کول- جېب کښې خوندي کول.

**جېب ته غوټه ورکول** :- (اص- شومتیا کول- پیسې بالکل نۀ لګول.

**جېب ته کتل** :- (اص- (۱) خپل وس طاقت کتل. (۲) دبل نه د خرڅ طمع کول.

**جېب ته کول** :- (اص- و________ جېب ته اچول.

**جېب ته لاس نۀ وررول** :- (اص- خرڅ بېخي نۀ کول- د خپـل جېب نه خرڅ کولـو ته غاړه نۀ کښېښول- شوُمتیا ښکاره کول.

**جېب ته نۀ کتل** :- (اص- خپـل حیثیت تـه نـۀ کتـل- د آمد نـه زیـات خرڅ کـول- فضول خرڅي کول.

**جېب ټینګول** :- (اص- (۱) خرڅ نۀ کول. (۲) جېب په لاس کښې کلك نیول.

**جېب جوړول** :- (اص- د درزي په جامه لته کښې جېب ګنډل.

**جېب ځیرول** :- (اص- جېب خالي کول- ټول مال لګول.

**جېب درنېدل** :- (اص- جېب ډکېدل- جېب ته زیات مال اچولے کېدل.

**جېب ډکول** :- (اص- (۱) جېب ته مال اچول. (۲) بډې رشوت اخستل.

**جېب راتشول** :- (اص- جېب بېخي خالي کول- په جیب کښې موجود مـال ټول لګول.

**جېب ښیل** :- (اص- چاته د خپل مال ښودل- په جېب کښې موجوده رقم ښکاره کول- حساب ښکاره کولز

**جېب کتل** :- (اص- (۱) جېب ځیرول- د جېب تلاشي کول. (۲) خپـل جېب پـه دې وجه کتل چې ګنړ کپانو څۀ تر ایستي نۀ وي.

**جېب کټ کول** :- (اص- جېب پرې کول- د چا جېب چې ګڼ کپـان اووهي- جېب وهل.

**جېب کښې ګوتې وهل** :- (اص- (۱) په جېب کښې لاس وهل- د جېب نـه پیسـې راویستل- جېب لټول. (۲) د جېب تلاشي اخستل.

**جېب لټول** :- (اص- و________ جېب کښې ګوتې وهل.

**جېب وهل** :- (اص- و________ جېب کټ کول.

**پردي جېب ته کتل** :- (اص- بل سړي نـه دخرڅ طمـع کـول- دخپـل جېب نـه پیسې نۀ لګول.

**په جېب باد نۀ لګول** :- (اص- د خپل جېب نه سره کاسیره نۀ راویستل خرڅۀ نۀ کول- د شوُمتیا اخري حد ته رسېدل.

**په جېب پورې** :- (اص- د جېب ترحده- د وس مطابق- په جېب کښې د پیسو د شتۀ والي یا نیشتوالي حالت.

**په جېب کښې ساتل** :- (اص- (۱) پـه قبضـه کښې ساتل- پـه لاس کښې ساتل. (۲) د جېب نه نۀ راویستل.

**په جېب کښي ورمنډل** :- (اص- چاته څۀ په زور ورکول.

**په جېب لاس کښېښودل** :- (اص- (۱) شوُمتیا کول- پیسې نۀ لګول. (۲) د ګڼ کپانو د یرې جېب په لاس کښې ټینګ نیول.

**په جېب وهل** :- (اص- (۱) په هر څۀ قبضه کول. (۲) د پیسې په زور ځوك پړ کول.

**د جېب خبره** :- (اص- د وس خبره- د شتمنۍ قصه.

**د جېب راویستل** :- (اص- چاقو، چاړه، تماچې یا پیسې د جېب نه رابهر کول.

**جیباتـه** :- (جي+با+تَـه)-[اَف: پ (قـاموس)- اس-مـؤ-وا-ج: جیاباتې]- جیبتـه- څادر- لوپټه- پټکے.

**جیبته** :- (جي+ب+تَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- و______ جیباته.

**جَې پـال** :- (جې+پا+لُ)-[ه-اس معرفـه]- یـو هنـدو راجـه چې د محمـود غزنـوي سره ئې جنګ کړےؤ او ماتې ئې خوړلې وه.

په خوشحال باندې خو وار دے داد ے راغے

خداے د درست جهان ساتي له دے جے پالَ (خوشحال)

**جیتے** :- (جي+تے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]- د کـاڼو یـا خاورونـه جـوړ غونډ شام مرګاټي چې ماشومان لوبې پرې کوي.

**جِیټ** :- (جي+ټ)-[اَف:پ (قاموس)- اس-مذ]- د اوښانو د خوراك یو بوټے.

**جېټ** :- (جې+ټ)-[اَف:پ (قاموس) اس-مذ]- د خشـاکو او خپیـاکو ځـاے چې د نغري سره نژدې وي.

**جېټ** :- (جي+ټ)-[اپ-ه: جېټهه-اس-مذ]- د هندي کال دریمه میاشت

هلته پـوماختې بـوخت چلې و اوري جـړې نۀ وي

د هاړ جېټ دا توري خاورې سره غارمه اوسیلۍ نۀ دي (اشرف مفتون)

**جیټکـه** :- (جي+ټ+کـه)-[اَف:پ (قـاموس)اس-مـؤ-وا-ج: جیټکې]- سـتړے- ستوماني.

**جیجړی** :- (جي+ج+ړي)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- (۱) د اوسپنې یا مسین لوښے چې لاستے لري او غـوا پـه کښـې لوشلے شي. (۲) د اوبـو ځښلـو خاورینه باډوله- ډولۍ.

**جیجي** :- (جي+جي)-[اپ-اس-مذ]- د ماشومانو په ژبه تي ته وئیلے شي.

**جیجے** :- (جي+جَے)-[اپ-اس-مذ]- د یو مارغۀ نوم چې د لویټ نوم مارغـۀ نـه نۀ بلېږي.

مګر مرګ ئې په ارمان وبله جدا کا

د جینجي جدائي نشته له لویټه (خوشحال)

**جې جې** :- (جَې+جَې)-[ه-کلمه]- د هندوانو د عبادت کلمه.

ځوك په لورې د کعبه ځي په هې هې

ځوك د پورې لره چلېږي په جې جې (خوشحال)

**جېجي** :- (جې+جي)-[اپ (صو)-اس]- ماشومان وریځو ته جېجي وائي

**جېحـون** :- (جې+حُو+ن)-[ع-اس-مـذ]- د بلـخ پرخـوا و شـا کښـې یـو مشـهور سیند.

کـه رودُونـه پار پرار وُو

سبز د وینو دے جېحون (خوشحال)

**جَیّد** :- (جَے+ي+دُ)-[ع-ص-مذ]- (۱) ښۀ- کره. (۲) زبردست- مضبوط- تکړه.

**جیر** :- (جي+رُ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مـذ]- جَر-هغـه اوچت اواز چې د قـامي اتڼو اچولو په وخت کښې ویستلے شي.

**جیرول** :- (جي+رَ+و+لُ)-[اپ (م)-مص مت]- ځیرول- کتل.

**جیرونه** :- (جي+ر+و+نه)-[اپ (م)-حمص]- ځیرونه- کتنه.

**جيروُونکے** :- (جيِ+رُ+وُو+نْ+کَے)-[اِپ(مر)اس فـاع-مـذ-وا-ج: جيرووُنکي (مؤ: جيروُونکي)]- ځيروُونکے- کتوُنکے.

**جيربدل** :- (جيِ+رِي+د+لْ)-[اِپ(مر)-مص مت]- ځيربدل- کتلے کېدل.

**جيربدنه** :- (جيِ+رِي+د+نه)-[اِپ (مر)-حمص]- ځيربدنه- کتلے کېدنه.

**جيربدُونکے** :- (جيِ+رِي+دُوُ+نْ+کے)-[اِپ (مر)مف-مـذ-وا-ج: جيربـدُونکي (مؤ: جيربدُونکي)]- ځيربدُونکے- کتلے کېدُونکے.

**جيرې** :- (جيِ+رئ)-[اِپ (ب، خ)-اس-مؤ]- د خاورو گډوډې- دخاورو هغه لوښے چې لاستے لري او اُوبهٔ په کښې ځښلے شي.

**جيزمه** :- (جيِ+زْ+مَه)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: جيزمې]- ځيزمه- جيږمه- وبـانو غاړے.

**جيزوپيز** :- (جيِ+زْ+پيِ+ز)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- خراب انگولے.

**جيزوپيز کول** :- (اَف) اص- انگولے- خراپول.

**جيږ** :- (جيِ+ږْ)-[اِپ )مر+گن-ص]- (۱) ځيږ- ديږ- ببر. (۲) غبرتي- تکړه.

**جيږمـه** :- (جيِ+ږْ+مـه ياجيِ+گْ+مـه)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ-وا-ج: جيږمې]- و_______ جيزمه.

**جېسل** :- (جېِ+س+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]- تنگول- کړول.

**جېسـلے** :- (جـېِ+سَ+لے)-[اَف:پ (قـاموس)-مـف-مـذ-وا-ج:جېسـلي (مؤ:جېسېلې)]- تنگ کړے- کړولے.

**جېسنه** :- (جېِ+س+نه)-[اَف:پ (قاموس) حمص]- تنگونه- کړونه.

**جېسـونکے** :- (جېِ+سُـو+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-فـاع-مـذ-وا-ج: جېسوُنکي)]- تنگوُونکے- کړوُونکے.

**جيسے** :- (جيِ+سَے)-پ (سو)-اس-مذ]- جَسے مَسين کنډول.

**جَيش** :- (جَيِ+شْ)-[ع-اس-مذ-وا-ج: جېشوُنه]- فوځ- لښکر.

که هرڅو وکړې د دنيا عېشونه
کوټونه مات کړې په خپل جېشونه (خوشحال)

**جيشکيشته** :- (جيِ+شْ+کيِ+شْ+تَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- د جستونه جوړه کُشته- د جستو نه جوړه هغه دوائي چې سترگو ته اچولے شي.

**جېـل** :- (جـېِ+لْ)-[اَنـگ:اس-مـذ-وا-ج:جېلونـه]- قيدخانـه- بنـدي خانـه- جېلخانه.

**جېلخانه** :- (جېل+خا+نَه)-[اِپ تر-اس-مؤ-وا-ج: جېلخانې]- و_____جېل.

**جېلر** :- (جېِ+لْ+ر)-[اَنگ:اس-مذ-وا-ج: جېلران]- د جېل افسر- دجېلخانې عهده دار- د بندي خانې داروغه.

**جيلغ** :- (جيِ+لْ+غ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مذ-وا-ج: جيلغونـه]- (۱) دُمچي (۲) قطار. (۳) د زين د لاندې لمڅے. (۴) چېل- داکوړو وړے.

**جيم** :- (جيِ+مْ)-[ع-اس-مذ-وا-ج: جيمونـه]- د پښـتـو د الف بې د پټـې اووم تورے.

سُور پيزوان دې په سرو شونډو هسې زېب کا
لـکـه جـيـم پـــه قـلـم کـښـلے کاتباتو (رحمٰن بابا)

(۲) د گيدړانو، لېوانو نيولو کوړکې.

**جَېن** :- (جَېِ+نْ)-[ه-اس-مذ]- د هندوانو يوه فرقه چې جېني مذهب مني.

**جيخجړ** :- (جيِ+نْ+جَ+ړ)-پ (ظفر)-اس-مذ]- پاپړه- شاهتره.

**جيخجړکـه** :- (جيِ+نْ+جَ+ړ+کَـه)-[اِپ (ظفـر)-اس-مـؤ-وا-ج: جيخجړکـې] – ډنډاره مچې- توره غومبسه- توره بمبره.

**جيخجڼ** :- (جيِ+نْ+جَ+نْ+ړ)-[اِپ-اس ص-مذ(مؤ: جيخجڼه- مړڅپن- مړاوے.

**جيخجـو** :- (جيِ+نْ+جـو)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]- مجـذوب- مـزوب بـې پروا- بې حاله.

**جينکــــټ** :- (جــــي+نَ+کَ+ټْ)-[اَف:پ (قــــاموس)-اس-مـــذ-وا-ج: جينکوټونه]- يو قسم شينکے چې پاڼې ئې په مزکه خورې پرتې وي او په هر ترلے شي.

**جينگا** :- (جيِ+نْ+گا)-[ه-اس-مذ]- سينگئ- يو قسم وړوکے کب يا مهے.

**جينگا** :- (جيِ+نْ+گا)-[اَف:پ (قاموس)

**جِينـــگ جينـــگ** :- (جيِ+نْ+گْ+جــيِ+نْ+گْ)-[اِپ-اس صـــو-مـــذ]- (۱) رينگارينگا. (۲) خوشامنده- چاپلوسي.

**جينگ جينگ کول** :- (اص- رينگارينگا کول. (۲) خوشامنده- چاپلوسي کول.

**جينگخُولے** :- (جينگ+خُوُ+لے)-[اِپ-اس ص-مذ]- چينگخـولے- هغـه څوك چې خولهٔ ئې هروخت چينگه وي- جينگداړے.

**جينگـداړے** :- (جينـگ+دا+ړے)-[اِپ-اس ص-مـذ]- (۱) چينگخـولے- چـې داړې ئې چينگې راوتې وي. (۲) يو قسم د ماشومانو لوبه.

**جينگـړ** :- (جـيِ+نْ+گ+ړ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ (مـؤ-وا:جينگـړه-ج: جينگړې)]- (۱) بې همته- بې خونده- بې وجې. (۲) کمزورے ماشوم.

**جينوټارے** :- (جيِ+نو+ټا+رَے)-[اِپ-اس ص-مذ-وا-ج: جينوټاري]- جينوټے- هغه کس چې د ښځو خويونه کوي.

**جينوټے** :- (جيِ+نو+ټے)-[اِپ (سو)-اس ص-مذ]- جينوټارے.

**جينۍ** :- (جيِ+نئ)-[اِپ-اس-مؤ]- جنکۍ- جينکۍ- جل.

ځار شه ښشنداري جينۍ ستا له سادگۍ څخه
ځار شه کلانکارې جينۍ ستا له خاموشۍ څخه (طاهر کلاچوي)

**جيِو** :- (جيِ+وْ)-[اِپ-اس-مذ]- قربان- ځار- درنه صدقه شم.

**جيو** :- (جيِ+يو)-[ه-کلمه]- ژوندې اوسې- خوشحاله اوسې- روغ موټ اوسې.

**جيوجار** :- (جيو+جا+رْ)-[اِپ-اس-مذ]- ځارقربان- صدقه- جيوجان.

**جيوجار کول** :- (اص- ځارقربان کول- ځان صدقه کول.

**جيوجان** :- (جيو+جا+نْ)-[اِپ-س-مذ]- جيوجار. (۲) راشه درشه.

**جيو جيو** :- (جيو+جيِ+ؤ)-[اِپ-کلمه]- جيوقربان- ځارقربان.

په جيو جيو ورته پستې خبرې وائي
هر زمان له تا په څو رنگه همراز مے (خوشحال)

**جيوري** :- (جيِ+وْ+رِيْ)-[اَنگ-اس-مؤ]- د سر پنجانو عدالت- هغه ثالثان چې دحج سره په مقدمه کښې مدد کوي.

**جيـو ميټـري** :- (جيِ+وْ+مَـيِ+ټْ+ري)-[اَنـگ: اس-مـؤ]- د حسـاب د علـم يـوه څانگه- اقليدس- مساحت.

**جيـو ميټـري بکـس** :- (جيـوميټري+بَ+کْ+سْ)-[اَنـگ-س-مـذ]- هغـه ورکوټے ډبې چې د جيو ميټري د کرښو ويستلو او ناپ کولو آلے په کښې پرتې وي.

◈◈◈

# ځ

**ځ** :- (دْ+زِيْ+مْ)-[پ-حرف]-د پښتو ژبې د الف بې د پټې اتم توری دی دا تکی په پښتو ژبه کښې د هغه لفظونو په لیك کښې استعمالیږي کوم چې په فارسی ژبه کښې په ج لیکلي کیږي. لکه جگر نه ځیگر-جان نه ځان-خو اکثر د پښتو په زړو کتابونو کښې دا تکی په غلطه املا لیکلی کیږي.

**ځا** :- (دْ+زا)-[پ-امر]-د تلل مصدر نه فعل امر-د غصې په حالت کښې هائې مختفي په الف بدله شي او د ځه نه ځا شي-ځه-درومه.

**ځاځل** :- (دْزا+دْز+لْ)-[پ-مص مت]-غصه کول-په سوخت کښې ثوك ځنډل.

**ځار** :- (دْزا+رْ)-[پ-اِس]-(۱) جار-قربان-جیو. (۲) د پښتو ټپې د وئیلو نه وړاندې سندر غاړی یکه ځار ضرور وائي.

**ځار ځار** :- (ځار+ځا+رْ)-[پ-اِس-صو]-(۱) قربان قربان-جار جار. (۲) ژړا فریاد.

**ځار ځار کول** :- (اِص)-جار جار وئیل.

**ځارول** :- (دْزا+ر+و+لْ)-[پ-مص مت]-جارول-قربانول-نثار کول.

**ځارونه** :- (دْزا+ر+و+نه)-[پ-حمص]-جارونه-قربانونه.

**ځاروُونکی** :- (دْزا+رَ+وُوْ+نْ+کی)-[پ-اس فاع-مذ-وا-ج: ځاروُونکي (مؤ: ځاروُونکې)]-جاروُونکی قربانوُونکی.

**ځارېدل**:- (دْزا+رې+د+لْ)-[پ-مص لا]-جارېدل-قربانېدل.

ځهٔ شو که تر سل ځله ځاریږي په ساعت کښې
گگل د بلبلانو په چغار نهٔ زهیریږي (فاضل)

**ځارېدنه** :- (دْزا+رې+د+نه)-[پ-حمص]-جارېدنه-قربانېدنه.

**ځارېدُونکی** :- (دْزا+رې+دُوْ+نْ+کی)-[پ-فاع-مذ-وا-ج: ځارېدُونکي (مؤ: ځارېدُونکې)]-جارېدُونکی-قربانېدُونکی.

**ځاږل** :- (دْزا+ژ+لْ یا گ+لْ)-[پ-مص مت]-گرول شوکارول-نوکارول.

اور لرې په مخ کښې چې په تامئېن کېدلم
مابه په دا بله لمبهٔ ننه زړهٔ ځاږهٔ (خوشحال)

**ځاږلی** :- (دْزا+ژ+یا گ+لی)-[پ-مف-مذ-وا-ج: ځاږلي-مؤ: ځاږلې]-گرولی-شُوکارولی-نُوکارولی.

**ځاږنه** :- (دزا+ژ+نه یا گ+نه)-[پ-حمص]-گرونه-شوکُارونه-نوکارونه.

**ځاږوُنکی** :- (دزا+ژوُ+نْ+کی)-[پ-اس فاع-مذ-وا-ج: ځاږوُنکي (مؤ: ځاږوُنکې)]-گروُونکی-شُوکاروُونکی-نوکاروُونکی.

**ځاگۍ** :- (دزا+گۍ)-[پ-اِس-مؤ]-د غنمو د گېډودلۍ یا کېتهه.

**ځالگۍ** :- (دزا+لْ+گۍ)-[پ-اِس-مؤ]-جاله-بنځولی-ځالۍ-د اوسېدو ځای-د ځاله اسم تصغیر.

**ځاله** :- (دْزا+له)-[پ-اِس-مؤ-وا-ج:ځالې]-جاله-منجاله-بنځولی.

تورې سترگې ئې تور زاغ دی
را نزدې د باز له ځالې (خوشحال)

**ځالۍ** :- (دزا+لۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-ځالگۍ.

**ځام** :- (دزا+مْ)-[پ-کلمه]-دزهٔ وایم مخفف.

**ځان** :- (دزا+نْ)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: ځانونه]-(۱)تن-وجود-جسم.

که ژړا بچ کړې نهٔ وې پرې به پوخ وُم
ستا د مخ په تبرهٔ اور مې شهٔ درست ځان وریت (علي خان)

(۲) ساه-دم-رُوح. (۳) معشوقه-د زړهٔ ټوټه-خوږ.

**ځان اور ته اچول** :- (اِص)-(۱) ځان اور ته ورغورزول. (۲) ځان په تکلیف کښې گېرول.

عاشقي په اختیار نهٔ کېږي هوښیار شه
ځان واورته اچول اختیار د چا دی (حمید)

**ځان ایغرگڼل** :- (اَف)-اِص-ځان لوی سړی شمارل-ځان په څهٔ کښې حسابول.

**ځان بائېلل** :- (اِص)-ځان قربانول-ځان ختمول-ځان مړول.

ستا د حسن لشکر راغی ځان ئې بائېلو
د عاشق د زړهٔ مېدان هر گوره تنگ دی (تیمور شاه)

**ځان بدلول** :- (اِص)-(۱) د یو ځای نه خپله تبدیلي کول. (۲) خوي بوي بدلول. (۳) د اشنا سړي سره د غېرو سلوك کول. (۴) مغرورتیا ښکاره کول.

**ځان پر کتل** :- (اِص)-ځان په څهٔ څیز ازمائېل-کوشش کول.

**ځان پرِوژل** :- (اِص)-(۱) ځان پرې قتلول. (۲) په څهٔ کار کښې ډېره زیاته خواري کول. (۳) د چاسره ډېره زیاته مینه کول. (۴) ډېر خوړل.

**ځان پړسول** :- (اِص)-(۱) خفه کېدل-مرورېدل. (۲) ځان لوی سړی شمارل ډډېدل-غتېدل-تکبر کول.

**ځان پل کول** :- (اِص)-زغم او برداشت ښکاره کول.

**ځان پور ته پور ته کول** :- (اِص)-(۱) په لافو شافو خپل ځان تورزن لائق او لوی سړی بلل. (۲) غصه کول-د غصې له کبله ټینگ ټینگ کېدل.

**ځان پورې خند کول** :- (اِص)-په خپل ځان پورې په خپله خندا کول- ځان شرمول.

**ځان په جلته کښې ورسره اچول** :- (اَف)-اِص-ځان په جوال کښې ورسره اچول-د چا په دعویٰ یا لانجه کښې ځان ور گډول.

**ځان په جوال کښې ورسره اچول** :- (اَف)-اِص- و___ ځان په جلته کښې ورسره اچول.

**ځان په دُوک کول** :- (اِص)-ځان کړول-تکلیفونه زغمل.

ځان په دُوَك کړه علي خانه زده سلوك کړه
هله غواړه د دلدار لکه د تار ملا

**ځان په ډډه کول** :- (اِص)-ځان یو طرف ته کول-د یو ځای نه غرېدل-په څهٔ کار غم غرض نهٔ کول.

**ځان په گوته ځنډل** :- (اِص)-ډېره صفائي کول-ډېره نازك مزاجي ظاهرول-په ځان دُوړه نهٔ پرېښول.

چې په گوته ځان ځنډي له زیانه تښتي
دا سپین چرگ دی له بانگیانو حساب نهٔ دی (علي خان)

**ځان په يوه او په بله کول** :- (اص)-(۱) يو طرف ته او بل طرف ته ځان کول. (۲) د څۀ کار نه خپل ځان په انه بانه بچ کول.

**ځان تلل** :- (اص)-(۱) د ځان تول کول-(۲) خپل زور يا برکت کتل.

**ځان ته ترېنځ وهل** :- (اص)-ځان ته تېشه وهل.

**ځان ته تېشه وهل** :- (اص)-ځان ته ترېنځ وهل-خپل ځان ته ګټه کول-د خپلې ګټې خيال ساتل.

**ځان ته ځان نۀ وئېل** :- (اص)-(۱) د خپل ځان نه بې پروا کېدل. (۲) د خپل صحت خيال نۀ ساتل. (۳) په څۀ صحت خيال نۀ ساتل. (۴) په څۀ کار کښې ډېر محنت او کړاؤ کول.

**ځان ته خوړل ښښل** :- (اص)-يواځې خوراك ښښاك كول.

**ځان ته رغبدل** :- (اص)-ځان ته وئېدل-ځان سره خبرې کول.

**ځان ته غره کېدل** :- (اَص)-مغروره کېدل-تکبر او لوے ښکاره کول.

**ځان ته کتل** :- (اَص)-(۱) خپل ځان ځيرول. (۲) خپلې فائدې ته کتل. (۳) خپل سمې ته کتل. (۴) خپل وس ته خيال کول. (۵) د خپلې څېرې يا جامې په تماشه کېدل.

**ځان ته کول** :- (اص)-(۱) ځان ته رانزدې کول. (۲) د ځان د پاره ګټل. (۳) خپلې پرې جنبې ته را اړول. (۴) په ټګۍ، تېورۍ څۀ څيز ځان ته حاصلول.

**ځان ته ګوته نيول** :- (اص)-(۱) ځان په څۀ کښې شمارل-ځان لوے سړے خيالول. (۲) ځان بدنامول.

**ځان ته لګيا کول** :- (اص)-جدا په کار اخته کول-يواځې او بېله کار ورسپارل.

**ځان ته لګيا کېدل** :- (اص)-جُدا په کار اخته کول-يواځې او بېله کار ورسپارل.

**ځان ته لګيا کېدل** :- (اَص)-يواځې په کار شروع کېدل.

**ځان ته وئيدل** :- (اص)-و_______ ځان ته رغبدل.

**ځان تېل کول** :- (اص)-د چا سره په څۀ کار کښې شريك كېدل-چاسره انډيوالي ګډول.

**ځان ټولول** :- (اص)-(۱) ځان ګرډول-خپلې جامې ځان ته رانزدې کول. (۲) د چاسره تګ را تګ پرېښودل.

**ځان جوړول** :- (اص)-(۱) څۀ کار ته ځان تيارول. (۲) سر ځنې کول-خپل ځان ډولے کول. (۳) په ښو خوراکونو ځان څربول. (۴) مال پېدا کول.

**ځان جهان** :- (اص)-ځان او دنيا.

هېڅوك به دريغ نۀ کا ځان جهان ځنې په صبر
وويــنـي که دا حسن جمال دلجوئي دا ستا (حميد)

**ځان ځارول** :- (اص)-ځان قربانول-ځان صدقه کول.

**ځان ځان ته** :- (اص)-خپل خپل ځان تـه-بېلـه بېلـه-يـواځې يـواځې-ګوښې ګوښې.

**ځان ځايول** :- (اص)-ځان ته ځاے کول-ځان ته ځاے پېدا کول-جمعې ته ځان ورګډول.

**ځان چاسره نۀ برابرول** :- (اص)-(۱) خپل ځان د خلقونه اوچت او لوے شمارل. (۲) د چاسره سيالي نۀ کول.

**ځان څرګندول** :- (اص)-ځان ښکاره کول-کمال ښودل.

ستا خـويونه به په خپله ځان څرګند کا
زۀ بــه څــۀ وائــم چې تۀ له بلا تېرې (رحمٰن)

**ځان ځنډول** :- (ب،خ)-اِص-ځان ګچول-ځان راکښل-د څۀ کار د پاره ځان جوړول.

**ځان خلاصول** :- (اص)-(۱) ځان د قېد يا د بندش نه ازادول. (۲) ځان ازادول.

د يـوې فتنې نــه ځــان پــه دعا خلاص کړم
فــلـك بـيا نـوې فـتنې كه را بر څېرې (خوشحال)

(۳) څۀ کار په ښۀ شان نۀ کول. (۴) انې بانې کول.

**ځان خلاصېدل** :- (اص)-د څـۀ ذمـه وارۍ نـه خلاصے مونـدل-د څـۀ مصيبت نـه ازادېدل.

**ځان خوارول** :- (اص)-(۱) د ځان غريبول پېسې بربادول. (۲) کړېدل-ځان ته تکليف رسول.

رضــا و سـپـاره قـضات فـراغت شه
او کـه نور څۀ نور څۀ وائي ځان به خوار کړې (رحمٰن)

**ځان خوړل**:- (اص)-(۱) غم فکر کول. (۲) ځان کړول.

چــې د ظـلـم په کر دې تل ميدان خوړ
دماغي ځان ته غره خود به د ځان خوړ (حميد)

**ځان خوږول** :- (اص)-(۱) ځان زخمي کول-ځان ژوبلول-(۲) د چاسره په څۀ کا کښې ډېره همدردي او مرسته کول.

**ځان خوږول** :- (اص)-چا ته ځان ورنزدې کول-چاسره خوږې خوږې خبرې کول او بيا کار ترينه ايستل.

**ځان خوندي کول** :- (اص)-(۱) ځان محفوظ کول-پټېدل. (۲) پـه يو ګوټ کښې کښېناستل يا بهر ته نۀ راوتل. (۳) دا ستوګنې ځاے پېدا کول.

**ځان د پاسه** :- (اص)-دځان نه لوے ځان نه اوچت.

**ځان ډُورې دورې کول** :- (اِص)-(۱) ځان ډډې ډډې ته کـول. ځان ساتل. پټېدل. (۲) بانې لټول.

**ځان ډډې ډډې ته کول** :- (اص)-و_____ ځان ډُورې دورې کول.

**ځان ډوبول** :- (اص)-ځان غرقول.

ولې ځان پر ډُوبوې ورته دربړې
ښکلې مخ ته يو نظر كه ځا ګذر (حميد)

**ځان رسوا کول** :- (اص) ځان شرمول. ځان بې عزته کول. بې حيائي کول.

عشق د مشك پټول نۀ شي تيمور شاه
چې په خپله ځان رسوا کا هغه رنګ دے

**ځان ژړل** :- (اص)-د ځان غم کول-خپل فکر کول.

چې مئين ددلبرانه چې جمال شوې
اے رحمانه ځان وژاړه کوك په کوك

**ځان ژغورل** :- (اص)-ځان ساتل-ځان بچ کول-ځان په ډډه ساتل.

ليلا له خياله ښوري سر تا قدم له نازه
مجنون څخه ځان ژغوري سر تا قدم له نازه (علي خان)

**ځان ساتل** :- (اص)-(۱) ځان ژغورل-ځان بچ کول.

ځان ساته له وينو چې د ځان پر ککړ نۀ شي
تۀ چې قصابيك وے مدام د لاس ترليو (علي خان)

**ځان ساټ و باټ کول** :- (اف)-اص- ځان ښـه ډولے کـول-سر ځنې پـه ښـۀ شان کول-ټيم ټپس برابرول.

**ځان سپارل** :- (اص)-ځان حواله کول-د چا پړي ته غاړه کښېښودل.

علم تا بيائي په پورته جهل تا بيائي په کښته
يا عيسي لره وردرومه يا قارون ته ځان سـپاره (خوشحال)

**ځان سپمول** :- (اص)-ځان روستو روستو کول-څۀ خبرې نه يا د څۀ کار کولونه

ځان بچ كول.

**ځان سپينول** :- (اص)-ځان صفا كول-د ځان صفائي كول.

دتوبې درياب ئې تا وته پيدا كړۀ
سپين كړه ځان عبدالقادر لاد مخ

**ځان ستائيل** :- (اص)-د ځان تعريف كول-خپله او چته وئيل.

**ځان سترے كول** :- (اص)-ځان كړول-تكليف تېرول.

ډېر دې ځان دے په دا صبر سترے كړے
بـاري نـۀ شم ستا له مخه نظر ژغړے (حميد)

**ځان سختي ته نيول** :- (اص)-ځان تكليف او كړاؤ تـه ترل- د زيار او باسلو زم پيدا كول.

پـه جهان كښې كـه مردان دي هم هغه دي
چــې و ســختې وتــه ونـيسي ځانونه (خوشحال)

**ځان سانبالول** :- (اص)-(۱) ځان تيارول ځان ښكلے كول. (۲) ځان د څۀ افت يا تكليف نه بچ كول. (۳) اختيار كول.

**ځان سورچخوكے كول** :- (اَف)-اِص)-و____ ځان سرې غوښې كول.

**ځان سيند ته اچول**:- (اص)-ځان پـه سيند كښې لاهو كـول. (۲) ځان تـه نقصان رسول-ځان تاواني كول.

**ځان شمارل** :- (اص)-ځان شمېرل. ځان حسابول. ځان په څۀ كښې ګڼل.

د خلـوت لـه عـزيزانو مې زړۀ تورشو
ځان مې وشمارو د تركو په ګوندى بيا (حميد)

**ځان شمېرل** :- (اص)-و________ ځان شمارل.

د مطلوب له طالبانو چې ځان شمېرې
اے رحمن اول سيال شه بيائې مومه

**ځان صدقه كول** :- (اص)-ځان قربانول-ځان ځارول-د چا د پاره خپـل سروركول-ځان لوګے كول.

**ځان غښول** :- (اص)-(۱) ځان ځربول. (۲) ځان مغرورول-لوے كول.

چې د دين دانائي نۀ لرې پــه زړه كښې
بيهوده ځـان غتيوې په خولۀ ئې پوهه (حميد)

**ځان فرشته كول** :- (اص)-ځان پاكول-ځان په ښو او نېكو خلقو كښې حسابول.

كه شېخ ځان و علي خان ته فرشـــته كه
په خلوت كښې غبرې چارې كاندې پټ

**ځان قربانول** :- (اص)-و________ ځان صدقه كول.

**ځـان كتـل** :- (اص)-ځان تلـل-پـه څۀ كـار خپـل ځـان ازمائيـل- د ځـان انـدازه اخستل.

**ځان كښل** :- (اص)-ځان لرے كول-يو ځـاے نـه پټـښې ايسـتـل-پـه څۀ كـار ځـان ناغرضه كول.

**ځان كناره كول** :- (اص)-يو طرف ته كېدل-جدا كېدل-چاته نزدې نۀ ورتلل-ځان ګوشه كول.

چې وېش وي د شكرو ډېر عالم ور بـاندې تـول شي
چـې واخـلي خـپلې برخې نـور ځانـونه كناره كا (خوشحال)

**ځان كېنول** :- (اص)-ځان كوڼ اچول.

**ځان ګوتل** :- (اص)-(۱) ځان وهل. (۲) ځان ساتل-ځان بچ كول.

دا د عشق طاعوني رنځ بـه ئې ارمان شي
كـه د زهـد ځان كوتلې شي ژوندي بـيا (حميد)

**ځان كوڼ اچول** :- (اص)-په څۀ خبره ځان نـا غرضـه كـول-ځـان كېنول-بې پروائي ښكاره كول-ځان نا پوهه كول. ځان نا خبره كول.

**ځان ګچول** :- (ب،خ-اص-و____ ځان ځنډول.

**ځان ګرانول** :- (اص)-چاته ځان خوږول په چا خپل ځان عزيز كول.

**ځانګ وشه كول** :- (اص)- و____ ځان كناره كول.

خوچې عشق په زړۀ يشته كه عقل دروې ځان ګوشه كه
هم پـــه دا چـــې دهـتيانو در منځ ځوككاند كش كيش (حميد)

**ځان لرې اچول** :- (اص)-(۱) ځان په څۀ نۀ خبرول-ځان لرې شمارل. (۲) پـه ګـوټ كښې كښېناستل. (۳) وطن پرېښودل.

**ځان لوګے كول** :- (اص)-و____ ځان صدقه كول.

چې تر ځان ئې لوګے كړے قربانېږي
د جفا په اور د سوځې لكه سپانده (عبدالقادر خان ختك)

**ځان له اوله ايستل** :-(اص)-ځان د عقل او اندازې نـه بهر كـول-ډېـره لـوے او كبر كول.

**ځان لېونے كول** :- (اص)-ځان پاګل كول-ځان خامخا غصه كول.

**ځان مسخره كول** :- (اص)-ځان شرمول-ځان پورې ټوقو كول.

په كُـوم تـنـګ او په كُوم شرم نۀ پوهېږم
ما په عشق كښې ځان د خلقو مسخره كـۀ (حميد)

**ځان ملامت كول** :- (اص)-په خپل ځان په خپله بد وئيل-ځان ګرمول.

چې نـور خلق ملامت در باند وائي
لاپـــخوا تر خلقو خپل ځان ملامت كا (رحمان)

**ځان من بلل** :- (اص)-ځان درونډ ګڼل-ځان لوے سړے شمارل.

**ځان من من كول** :- (اص)-ځان من من ګڼل-ځان لوے شمارل-ځان من بلل.

**ځان من من ګڼل** :- (اص)-و________ ځان من من كول.

**ځان ناپوهه كول** :- (اص)-ځـان نـاخبره كـول-ځـان نـاخبره سـاتل- ځـان نـاغرضـه كول-په څۀ خبره ځان قصداً نۀ پوهه كول.

هم هــغه د مــحبت په رموز پوه شو
چې ئې ځان له خپلې پوه كړه نا پـــوهـ (حميد)

**ځان ناپوه ګڼل** :- (اص)-ځان كم عقل شمارل.

**ځان ناخبره ساتل** :- (اص)-ځان نا خبره لـرل-ځـان خامخـا د څۀ خبـرې نـه نـۀ واقف كول.

**ځان ناخبره كول** :- (اص)-و ______ ځان ناپوهه كول.

**ځـان نـاخبره سـاتل** :- (اص)-ځـان نـا خبـره لـرل-ځـان خامخـا د څۀ خبـرې نـه نـۀ واقف كول.

**ځان ناخبره كول** :- (اص)-و ______ ځان ناپوهه كول.

**ځان نغښتل** :- (اص)-ځان راټولول-تعلق پرې كول- ځان جدا كول.

هسې ځان له بې وفا عالم نغاړې
چې ماهم نۀ دے ليدلے زما روح (علي خان)

**ځان نيول** :- (اص)-ځان ټينګول-ځان مضبوطول-د زغم طاقت پيدا كول.

د عزت ترخوته ځان نيولے نۀ شې
په خوږ و پسې د مچ غوند ګرځانده (عبدالقادر خان ختك)

**ځان وچ ايستل** :- (اص)- ځان صفا ايستل-ځان د ذمه وارى نه بچ كول.

**ځان ورته تريخول** :- (اص)- ځان غصه كول-چانه سخت كار اخستل.

**ځان ورك كول** :- (اص)-(۱) د يو ځاے نه پناه كېدل.

پــه هــوا پسې د نفس سر هوا مه شه
ځان به ورك كړې لكه برق په داشتاب (حميد)
(۲) خپل نقصان كول. (۳) بې ځايه لوئي او كبر كول.

**ځان ورک کېدل** :- (اِص)-مغروربدل-کبرجن کېدل.

**ځان ورکول** :- (اِص)-(۱) ځان حواله كول. (۲) چارپاره قرباني كول.

**ځان وژل** :- (اِص)-(۱)خپل ځان مړ كول-خودكشي كول. (۲) په څهٔ كار كنبې زيات كوشش كول.

چې د عشق په جهل ځان وژني وګړے
كاش كه زهٔ عبدالحميد هغه پښتون شم

**ځان وهل** :- (اِص)-ځان ټكول-ځان ډبول-ځان ته څپېړې د اخلاصول.

اوس كه ځان وهم كه خاورې په سرلونم
په هيڅ رنګ په بيرته نهٔ راځي وارتېر شو (علي خان)

**ځان ويستل** :- (اِص)-ځان وباسل-ځان خلاصول.

د دنـيا لـه كـاروبـار ځان وباسه
ځان وباسه په احتياط له دې چيكړې (خوږدل)

**ځان ويلے کېدل** :- (اِص)-(۱) كمزورے كېدل-د بيمارى يا غم په وجه مانده كېدل. (۲) زيات محنت كول- ډېره خواري كول.

**ځان هېرول** :- (اِص)-(۱) خپل ځان ته نهٔ كتل.

چې وبل ته نصيحت كاځان ئې هېر وي
بل څوك نهٔ دي هغه تهٔ عبدالرحمان ئې
(۲) لوئي كول- خپل تېر وخت ياد نهٔ لرل.

**ځان يادول** :- (اِص)-ځان شمارول- ځان په څهٔ كنبې ګڼل.

**ځان يوغوړپ كول** :- (اَف)-اص-ځان شهٔ ډولے كول-په ښهٔ شان سر څنې كول- ځان ښكلے كول.

**بې ځايه** :- (اِص)-(۱) بغير د خپل ځان نه. (۲) بې هوشه-په ځان نا خبره.

**بې ځانه بې ځوله** :- (اِص)-(۱) بېخي بې هوشه. (۲) مړ- بې روحه.

**په ځان** :- (اِص)-په خپل بدن-په خپل وجود-ځاني.

اے په ځان له خپله ځانه بې خبره
تـهٔ معني له معني و غواړه بشره (مرزا خان انصاري)

**په ځان اخته كول** :- (اِص)-په خپل ځان كول-په تكليف كنبې ګېرول.

**په ځان اخته کېدل** :- (اِص)-په تكليف كنبې ګېرېدل.

**په ځان بلا كېدل** :- (اِص)-ځان ته د تكليف سبب جوړېدل.

د داني پــه طمع بند ازاد مارغهٔ شي
در به ستا په ځان بلا شي دا ستا طمع (حميد)

**په ځان خندل** :- (اِص)-په خپل ځان پورې ټوقې كول.

چې دانا ته نصيحت وائي خوشحال
دا دې واړه ناداني ده په ځان خاندې

**په ځان غنې راكښل** :- (اِص)-ځان په تكليف كنبې اچول-ځان عذابول.

**پـه ځـان قبلـول** :- (اِص)-پـه ځـان تېـرول. پـه ځـان اخسـتـل-څـهٔ خبرې تـه غـاړه كنبېښودل.

چې محنت په ځان قبول كا راحت مومـي
خدا ے دې نهٔ كاندي خواري د هېچا وركه (خوشحال)

**په ځان كنبې** :- (اِص)-په زړهٔ كنبې-د خپل ځان سره- په خپل بدن كنبې.

**پـه ځـان ګـوتې وهـل** :- (اِص)- (۱) ځـان صـفا كـول-ځـان سـتـره كـول. (۲) ځـان تيارول-مقابلې ته تيارې كول.

**په ځان ورکول** :- (اِص)-وربخښل-څهٔ څيز چاته سپارل.

**پرځـان تېـرول** :- (اِص)-پرځـان وړل-پـه ځـان زغمـل-سـختـي يـا مصيبت پـه ځـان پېڅل.

**پرځان وړل** :- (اِص)-و ـــــ پرځان تېرول.

**په چا ځان پورې ايستل** :- (اِص)-د چا په بركت خپل ځان بلې غـاړې تـه رسـول. د بل په وجه خپل كار تر سره كول.

**په خپل ځان** :- (اِص)-په خپل تن-په خپله په ځان.

پــه خــپـل ځــان ښېګړه وكـړه غره مه شه
پــــه ښــــېګــړه د ادې او د بــــابـــــا (رحمٰن)

**په خپلو متو ځان ساتل** :- (اِص)-و ـــــ په متـه ځان ساتل.

**په متـه ځان ساتل** :- (اَف)-اص-پـه زور ځان ساتل- پـه خپـل طاقت خپـل ځـان ژغورل-په خپلو متو خپل ځان ساتل.

**په يوائې ځان** :- (اِص)-په يو سر- يكې يوائې.

**ترځان تېرېدل** :- (اِص)-د خپل ځان پروا نهٔ ساتل- قرباني ته غاړه كنبېښودل.

زهٔ ودهٔ تــه تر ځان تېر يم
دے ومـا تــه پـه عناد (حميد)

**تر ځان لوے بار اخستل** :- (اِص)-تر ځان لوے بار وړل-د خپل طاقت او زغم نه لوے كار كول.

**تر ځان لوے بار وړل** :- (اِص)-و ـــــ تر ځان لوے بارا خستل.

**د ځان** :- (اِص)-ځاني-د خپل ځان.

تــهٔ د ځــان ئې زهٔ د ځان يم
تــــهٔ جــدا ئــې زهٔ جــدا (خوشحال)

**د ځان په غوښو اخته كېدل** :- (اِص)-په خپل غم او مصيبت كنبې ګېرېدل.

هسې زهٔ د ځان په غوښو عشق اخته كړم
لــكــه نــهٔ خــېـږي لــه ځان د پمن لاس (حميد)

**د ځان په نظر** :- (اِص)-د ځان په شان د ځان غوندې.

واړه د خــپـل ځــان پــه نظر ګوره كه دانا ئې
اے عبدالرحمانه جهان ټول عبدالرحمان دے

**د ځان ثاني نهٔ لېدل** :- (اِص)-څوك د ځان برابر نهٔ شمارل-ځان ډېر اوچت ګڼل.

**د ځان د پاره ځاګېنل** :- (اَف)-اص-(۱) خپل ځان ته كوهے كنستل. (۲) خپل ځان ته په خپله نقصان رسول.

**د ځان نه** :- (اِص)-(۱) له ځان-له خپله تنه-(۲) د خپله انده-د خپل طرف نه.

**د ځان نه اړول** :- (اِص)-د ځان نه بل طرف ته كول-ځان تر خلاصول.

**د ځان نه قلا چاپېرول** :- (اِص)-ځان بندول-د خلقو سره نهٔ ملاوېدل.

**د ځان وير** :- (اِص)-د ځان غم- د ځان ژړا-د ځان فكر.

په خندا كنبې مې ژړا ده لكه شمع
له عالمه پټ پنهان د ځان په وير يم (رحمان)

**د ځانه تراشل** :- (اِص)-د خپل ځان نه ياد خپله انده د دروغو خبرې جوړول.

**د خپل ځان** :- (اِص)-ځاني-د خپل وجود.

**له ځانه** :- (اِص)-و ـــــ د ځان نه.

چې ئې ووينم له ځانه خبر نهٔ يم
چــې خبر نهٔ يم له ځانه وايم څهٔ (رحمٰن)

**ځانته** :- (ځان+ته)-[اِپ-ص] -يوائې-بېل-جُدا-ګوښې.

**ځانته كول** :- (اَص)(۱) ګوښې كول. بېلول-يوائې كول.(۲) خپلول-خپل ځان ته كنبېښول

**ځان کېدل** :- (اص)-ګوښي کېدل-بېلېدل-يواځې کېدل.

**ځـان جـارووُنې** :- (ځان+جـا+ر+وو+نې)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: ځـان جـاروونې (مـؤ: ځـان جـاروونې)]-قربانېدونکے-ځارېـدُونکے-قربـانې کوونکے.

**ځان ځاني** :- (ځـان+دُ+زا+نيْ)-[اِپ-اس-مـؤ]-(۱) خپـل خپـل ځـان تـه-پـه خپلـه مخه.(۲) خود غرضي-د خپل ځان فکر. (۳) بې وسيلې توب.

**ځان ځاني کېدل** :-(اص)-(۱) د خپـل ځـان غـرض لټـولے کېـدل. (۲) بې وسيلې کېدل

**ځـانځولې** :- (ځـان+دُ+زو+لې)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ]-ډانـګ ډولـے-د ماشومانو په چې يو ماشوم د لاسو او پښـونه ونيسي او پـه هـوا کښې ئې وړي او ځوټې ورکوي.

**ځـانځومړے** :- (ځـان+د+زو+م+ړے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: ځانځومړي (مؤ: ځانځومړې)]-تپ-کمزورے-سست-ناراسته.

**ځانځومړے کېدل** :- (اَف)-اص-تپ کېدل-سستېدل-ناراسته کېدل.

**ځـانخورګي** :- (ځـان-خُوْ+رْ+ګِيْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ]-زړهٔ خـوړل ځـان کړول.

**ځانخورګي کول** :- (اَف)-اص-څهٔ خبرې پسې زړهٔ خوړل- بې ځايه ځان کړول.

**ځان خوښي** :- (ځان+خْ+و+ښيْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-خـود پسـندي-ځـان خوښونه-ځان ته څهٔ وينه-ځان په څهٔ کښې حسابونه.

**ځان خوښے** :- (ځان+خْ+وَ+ښے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مذ-وا-ج: ځان خوښي (مؤ: ځان خوښې)]-خود پسنده-ځان په څهٔ کښې حسابوُونکے ځان تـه څهٔ ويونکے.

**ځانـدار** :- (دْ+زا+نْ+دا+رْ)-[اِپ (ظفـر)]-اس-مـذ-(مـؤ: ځانـداره-ج: ځانـدارې)]- جاندار-د ساه خاوند-روح لرونکے.

**ځاندره** :- (ځانْ+د+ره)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: ځاندرې]-شـکل-صـورت- مشـاده- مشوره-ځانده-ځانګه-وجود-تنه-څېره.

**ځانده** :- (دْ+زا+نْ+دَه)-[اِپ (ځ)-اس-مؤ-وا-ج: ځاندےا]و_______ ځاندره.

**ځـان ساتونے** :- (ځان+سـا+ تُـوْ+نے)-[اِپ-اس ص-مـذ-وا-ج: ځـان ساتوني (مؤ: ځان ساتونې)-محتاط- احتياط کوونکے-پام کوونکے.

**ځان ستاينه** :- (ځان+سْ+تا+يَ+نه)-[اِپ-اس-مؤ]-خپـل تعريف پـه خپلـه کونـه-د ځان صفت کونه.

**ځـان ستايونے** :- (ځـان+سْ+تـا+يُوْ+نے)-[اِپ-اس ص-مـذ-وا-ج: ځـان سـتايُوني (مؤ: ځان ستايُونې)]-د ځان تعريف کوونکے-د خپل ځان صفت کوونکے.

**ځـان ښکارے** :- (ځـان+ ښ+کا+رے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-ص-مـذ]- هغـه ثوک چې د خپل ځان نه سېوا بل ځان ورته نهٔ ښکاري- خودنما.

**ځانکنـدن** :- (ځـان+ك+ن+د+ن)-[اِپ-اِس-مـذ]-ځنکنـدن-د مړيـدو وخـت-د ژوندون اخري سلګۍ. ځنکدن

ځانکندن که ئې د غم پهت وره کېږي

ارمـان نـهٔ کاچې حضور وي د ليلا (احمد شاه ابدالي)

**ځـانګړے** :- (ځـان+ګ+ړے)-[اِپ-اس-مـذ-وا-ج: ځـانګړي-[مؤ: ځـانګړې)]- بېل ځان ته-ځان له-ګوښي-جدا.

**ځانګه** :- (د+زا+ن+ګه)-[اِپ-مهمند)-اِس-مؤ-وا-ج: ځانګې]و ____ ځاندره.

**ځـانمنتوب** :- (ځـان+م+نْ+تو+بْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مـذ]-خـودبيني-ځـان ليدنه-لوے غرور-تکبر-ځانمني.

**ځـانمنے** :- (ځـان+م+نَے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: ځـانمني (مـؤ: ځانمنې)]-مغرور- کبرجن.

**ځانمني** :- (ځان+م+نيْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-مغرورتيا-کبر- خودبيني.

**ځانمني کول** :- (اف)-اص-کبرکول-غرور کول-خودبيني کول.

**ځان وزګارے** :- (ځان+و+ز+ګا+رے)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: ځان وزګاري (مؤ- ځان وزګارې)]-فارغ-بېکاره-وزګار.

**ځاني** :- (د+زا+نيْ)-[اِپ-ص]-(۱) جاني- د ځان سره تعلق لرونکے. (۲) پـه خپـل ځان-په خپله.

**ځاوو** :- (دْ+زا+وو)-[اِپ-اس-مذ]-ابشار-ځرونه-جړوبه.

**ځاؤ** :- (د+زا+ؤ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-حمله-زغل- زغابنت.

**ځاؤرول** :- (دزا+ؤ+رَ+ؤ+لْ)-[اِپ (ب-خ مص مت)]-تکليف ورکول- کړول.

**ځـــاؤرووُنکے** :- (دْزا+ؤ+رَ+وُو+نْ+کـے)-[اِپ (ب، خ)-اس- فـا ع-مــذ-وا-ځ: ځاوروونکي (مؤ: ځاؤروونکې)]- تکليف ور کوونکے- کړوونکے.

**ځاؤرونه** :- (دزا+ؤ+ر+و+نه)-[اِپ (ب،خ)حمص]-تکليف ورکونه-کړونه.

**ځاؤرېدل** :- (دزا+ؤ+رې+د+لْ)-[اِپ (ب،خ مص لا)]-تکليف رسېدل-کړېدل.

**ځاؤرېدنه** :- (دزا+ؤ+رې+د+ نه)-[اِپ (ب،خ)-حمص) تکليف رسېدنه-کړېدنه.

**ځاؤرېـــدونکے** :- (دزا+ؤ+رې+دُوْ+نْ+کـے)-[اِپ (ب،خ)-مـــف-مـــذ-وا-ج: ځاؤرېدُونکي (مؤ: ځاؤرېدُونکې)]-تکليف رسېدونکے-کړېدُونکے.

**ځائې** :- (دزا+ئې)-[اِپ-کمله-(۱) مقامي-د يو ځـاے اوسـېدونکے. (۲) د شروع نه د اول سرنه- دځايه-له ځايه.

دا طالع زما څهٔ اوس نـهٔ دے ځائي دے

چـې پـه چا باند مئين شم دماغي شي (خوشحال)

**ځاے** :- (د+زا+ے)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: ځايونه]-(۱) مکان جائې-ټکانړه.

اوس مې ځاے په دا جهان کښې پاتې نهٔ شهٔ

خـوزبـــدلے تـــر چهل اوتـــر پنجا يم (رحمٰن)

(۲) بستره-د خوب ځاے. (۳) مقام-درجه.

(۴) نـا اشناؤ سره ځاے د ګيلې نشته

هر چې وائم زهٔ حميدله اشنا وائم

**ځاے اچول** :- (اص)-بستره غوړول-د څملاستي د پاره په کټ اسباب سمول.

**ځاے اخستل** :- (اص)-څهٔ ځاے په بيعـه تر لاسـه کول. (۲) ځاے نيـول. د څهٔ ځاے د نيولو جوګه کېدل.

**ځـاپېر ځـاے** :- (ځاے+پ+ر+ځـا ے)-[اِپ-اِس-مذ]-ځـاے پـه ځـاے-يـو بـل ځاے.

**ځاے دربدل** :- (اص)-په يو بل ځاے اودربدل-په هر طرف څوکۍ کول.

**ځاے پـر ځاے کېدل** :- (اص)-(۱) ګډوډ کېدل-د يو بل نه جدا جدا کېدل.

(۲) په خپلو ځايونو مقرربدل. (۳) په بېلو بېلو ځايونو اودربدل.

**ځاے پـر ځاے پر ښښودل** :- (اص)-(۱) د چا د پاره د عزت پـه ډول خپـل نيـولے ځاے خالي کول-چا ته د ځايه پاځېدل. (۲) د يو ځايـه تلـل. معزول کېـدل.

(۳) په کډه تلل. (۴) د څهٔ پېوند خلهٔ ويستل.

**ځاے په ځاے** :- (اص)- جائې پـه جائې يـو بـل ځـاے-التـه دلتـه-دلے دُورے- ځاے پر ځاے.

ځاے په ځاے به وي ټولې د زلمو جونو

ښـائسته به پر جهان وي مونږ به نهٔ يو

**ځاے ته راتلل** :- (اص)-(۱) يو مقام تـه يا کور تـه راتلـل-(۲) اصليت تـه راتلـل

سمبدل. (۳) جوړ په ځای کېدل.

**ځي ته رسول** :- (اص)-(۱) څوك تر يو مقام پورې بوتلل-د چا تر ځايه جله کول. (۲) چاته ترقي ورکول. (۳) څوك د علم اوچت مقام ته خېژول. (۴) څوك څهٔ کار يا مقصد کښې کاميابول. تر ځايه رسول. (۵) يوه خبره تر اخري حده رسول.

**ځای ته رسېدل** :- (اص)-(۱) خپل مقام ته رسېدلې کېدل-ترځايه جلب کېدل. (۲) ترقي ورکېدل. (۳) د علم اوچت مقام ته رسېدل. (۴) په څهٔ کار يا مقصد کښې کاميابېدل. (۵) يوه خبره تر اخري حده رسېدل تر ځايه رسېدل.

**ځايجوړول** :- (اص)-(۱) مکان تيارولي-مبله جوړول. (۲) د چا د پاتې کېدو د پاره ځای ځائېگې برابرول. (۳) د چا د پاره ځای خالي کول.

**ځای جوړېدل** :- (اص)-(۱) مکان تيارېدل-مبله جوړېدل. (۲) ځای برابرېدل. (۳) د چار پاره ځای خالي کېدل.

**ځای خالي کول** :- (اص)-(۱) ځائې پرېښول-تعظيم کول. (۲) عهده خالي کول. (۳) څوك د يو ځايه ويستل-کول خالي کول. (۴) ځای لوگول-ځای شاړول.

**ځای د ځايه** :- (اص)-د لور لور نه-د يو بل طرف نه-د مختلفو سيمونه.

**ځای کول** :- (اص)(۱) ځايول-ځای خالي کول(۲) ځای جوړول-ځائېدل-مقام موندل.

يار مې هسې رنگه ځای ورکړو په سترگو
چې وهـر لوري ته گورم واړه دے دے (خوشحال)

**ځای کېدل** :- (اص)-(۱) ځای خالي کېدل-ځای جوړېدل. (۲) ځائېدل-(۳) نصيب کېدل-په برخه رسېدل.

وايـــه ځای شه د رقيب زير زمين
خدای دې هسې که په دا دعا آمين (حميد)

**ځای لرل** :-(اص)-(۱) مکان درلودل-د ځای خاوند کېدل.(۲) مناسبت لرل-حق لرل

ځای لري که بې منته بوسه راکړې
کوم کريم په چامنت د خپل کرم بږدي (رحمٰن)

**ځای موندل** :- (اص)-ځای حاصلول ځای په لاس راتلل-درجې يا عهدې ته رسېدل.

**ځای نيول** :- (اص)-(۱) مکان نيول-ځای قبضه کول. (۲) د څهٔ عهدے قابل جوړېدل. (۳) د چا په مرگ يا تگ د هغهٔ ځای په بنهٔ شان چلول.

**ځای ورکول** :- (اص)-(۱) کور ورکول-مکان ورکول. (۲) عهده وربخښل-(۳) نوکري ورکول.

**ځای وهل** :- (اص)-(۱) رتبه يا عهده تر لاسه کول. (۲) په چل ول يو ځای ټينگول.

**بې ځايه** :- (اص)-(۱) بې موقعې. (۲) گډوډ-لور به نور.

هره ساه خپله وروستۍ. گڼلې بويه
مرگې ډېرې خلقې سره بې ځای کړې (خواجه محمد بنگش)

(۳) د ځايه خوزېدلے-اوښتے-بې جوړه شوے.

**په ځای** :- (اص)-(۱) په مقام-موجود. (۲) په حقه-په رښتيا.

**په ځای ځای** :- (اص)-په موقعه موقعه-ځای په ځای.

**په ځای کول** :- (اص)-(۱) ابادول-ميشته کول. (۲) وادهٔ کول. (۳) په مقرر ځای کښېنول. (۴) يو ځای ته ټولول. (۵) حق ادا کول. سرته رسول.

که نظر په نعمتونو د ښهٔ خدای کړې
تـهٔ بـه کله د يوهٔ شکريه ځای کړې (خواجه محمد بنگش)

**په ځائې کښېناستل** :- (اص)-د مشرانو ځای نيول-د چا د ځای اخستلو جوگه کېدل.

**په ځای کېدل** :- (اص)-(۱) په خپل مقام موجودېدل. (۲) خپل ځای موندل (۳) حق ادا کېدل.

**په ځای نتوتل** :- (اص)-(۱) مکان ته دننه کېدل-د چاکورته ننوتل. (۲) په بستره کښې آرام کول.

**په ځای ورننوتل** :- (اص)-(۱) د شرعې خلاف د ښځې سره يو ځای کېدل (۲) چاته سمه سزا ورکړې کېدل.

**ترځايه رسول** :- (اص)-و ــــــ ځای ته رسول.

**ترځايه رسېدل** :- (اص)-و ــــــ ځای ته رسېدل.

**حق ور په ځای کول** :- (اص)-(۱) چاته خپل حق رسول. (۲) د چا خدمت کول (۳) سزاورکول.

**خپل ځای پېژندل** :- (اص)-خپله درجه او حيثيت پېژندل-د خپل ځان متعلق په غلط فهمۍ کښې نهٔ پاتې کېدل.

**د ځايه** :- (اص)-له ځايه-ځائې-د اول سرنه.

زهٔ له ځـايه دماغي په جهان راغلم
ما داهسې دماغ اوس نهٔ دے راوړے (خوشحال)

**د ځای ځای** :- (اص)-د بېل بېل ځای- د مختلفو ځايونو- د يو بل خوا.

**له ځايه** :- (اص)-و ــــــ د ځايه.

**ځای غلې** :- (ځای+غ+لی)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ]-هغه حامله ښځه چې د بچي نژدې کېدو په درد کښې گېره وه.

**ځـايکي** :- (د+زا+ي+کـيْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـؤ]-گـل زرې د نخښـې سترگه-د نخښې مېنځ.

**ځـايکي ويشـتل** :- (اَف)-اص-گـل زېـرې ويشـتل-د نخښـې مېـنځ ويشـتل-صحيح نخښه ويشتل.

**ځائېگهي** :- (دزا+ ئي+گ+هي)-[اپ-ص]-ځائېگې-پوخ په نخښه په ټېر.

ځائېگهي دود يشتلم
کوم خطائې په ويشتد (خوشحال)

**ځائې گير** :- (دزا+ئي+گي+رْ)-[اپ-ص]-په زړهٔ کښې-د زړهٔ دننه د ېره-استوگن.

بـده طمـعه ځـنې واخله
توکل په زړهٔ ځای گيرکړه (مرزا انصاري)

**ځـائېگې** :- (دزا+ئـي+گې)-[اپ-اس تصـغير-مـذ-وا-ج: ځـائېگي]-(۱) د ځـای اسم تصغير-مذ-وا-ج: ځائېگي]-(۱) د ځای اسم تصغير-جائېنگے. (۲) نخښه.

**ځائېگي ويشتل** :- (اص)-نخښه ويشتل.

**ځائې ناستے** :- (ځای+نا+سْ+تَے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مذ-وا-ج: ځای ناستي-(مؤ: ځای ناستې)]-زوے- بچے -د پلار په ځای ناست.

**ځايول** :- (د+زا+ي+و+لْ)-[اپ-مص مت]-(۱) ځای کول-گنجائش پيدا کول. (۲) زغمل-ېېځل-برداشت کول.

د ډېر ظـلم حـال د نهٔ وائمه چاته
ټول په زړهٔ کښې ځايوم ولې تر کومه (علي خان)

**ځایونګ** :- (دْ+زا+ي+و+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و ــــــ ځایونه.

**ځایونه** :- (د+زا+ي+و+نه)-[اِپ-حمص]-(۱) ځایونګ-ځاے کونه ګنجائش پیدا کونه. (۲) زغمنه-پېځنه-برداشت کونه.

**ځایوُونکے** :- (دْ+زا+ي+ووُ+نْ+کے)-[اِپ-اس فاع-مذ-وا-ج: ځایووُنکي-مؤ: ځایووُنکې]-(۱) ځاے کوُونکے ګنجائش پیدا کوونکے. (۲) زغمووُنکے-پېځونکے-برداشت کوونکے-ځایوونے.

**ځایوونے** :- (دْ+زا+ي+ووْ+نے)-فاع-مذ-وا-ج: ځایووني (مؤ: ځایوونې)]-و ـــــــــــ ځایوونکے.

**ځائېدل** :- (دْ+زا+ئي+د+لْ)-[اِپ-مص لا]-(۱) ځاے کېدل-راتلل-ګنجائش پیدا کېدل. (۲) زغملے کېدل-برداشت کېدل.

**ځائېدنګ** :- (دْ+زا+ئي+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس) حمص] و ــــ ځائېدنه.

**ځائېدنه** :- (دْ+زا+ئي+د+نه)-[اِپ-حمص]-(۱) ځائېدنګ-ځاے کېدنه-راتلنه-ګنجائش پیدا کېدنه-(۲) زغمنه-برداشت کونه-پېځلے کېدنه.

**ځائېدُونکے** :- (د+زا+ئي+دُو+نْ+کے)-اِپ-مف-مذ-وا-ج: ځائېدُونکي (مؤ: ځائېدُونکې]-(۱) ځاے کېدُونکے-راتلُونکے-ګنجائش پیدا کېدُونکے (۲) زغملے کېدُونکے-برداشت کېدُونکے.

**ځب** :- (دْ+زَ+بْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-مؤ-وا: ځبه-ج: ځبې]-(۱) ګنې وینبتۀ-ګور وینبتۀ. (۲) په ځۀ نرم څیز د سخت څیز د را پرېوتو اواز.

**ځب کېدل** :- (اَف)-اص-(۱) وینبتۀ ګنې ګور کېدل. (۲) د سخت څیز په نرم شي را پرېوتل او اواز ویستل.

**ځبځب** :- (ځب+دْ+زَ+بْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-میده میده-پوست پوست.

**ځبځب کول** :- (اَف)-اص-مېده مېده کول-پستول-ښۀ اوړۀ کول.

**ځبځب کېدل** :- (اَف)-اص-مېده مېده کېدل-پستېدل-ښۀ اوړۀ کېدل.

**ځبرېرے** :- (ځب+ژيِ+رَے یا ګي+رَې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-ص-مذ]-ګڼه رېره لرونکے. جب رېرے-د ګڼې رېرې خاوند.

**ځبل** :- (دْ+زَ+ب+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-کوټل-مېده کول-دانې ټکول.

**ځبله** :- (دْ+ز+بْ+له)-[اِپ-کلمه-مؤ]-یو تر بله-په خپلو کښې-په خپل مېنځ کښې.

پـه یـوه ژبه پښتو سره وئیل کړو
ولـې یـو ځـبله نۀ شو خبردار (خوشحال)

**ځبلے** :- (دْ+زَ+ب+لَے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: ځبلي (مؤ: ځبلې]-(۱) ټکېدلے کوټلے-مېده کړے. (۲) خوار-ذلیل-بدحاله. (۳) ګڼ ګور.

**ځبن** :- (دْ+زَ+ب+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ -(مؤ-وا: ځبنه-ج: ځبنې]-(۱) خیرن-خیچن-مېله. (۲) ناپوهه-کم عقل-بې شعوره.

**ځبنګ** :- (دْ+زَ+بَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس-حمص]و ـــــــــ ځبنه.

**ځبنه** :- (دْ+زَ+ب+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-(۱) ځبنګ-مېده کونه-ټکونه-کوټنه. (۲) ګڼه ګوره رېره.

**ځبوالے** :- (دْ+رَ+بْ+وا+لے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-ګڼوالے-ګوروالے-زیاتوب.

**ځبونکے** :- (دْ+زَ+بُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اس فاع-مذ-وا-ج: ځبونکي-(مؤ: ځبونکې)-مېده کوُونکے-کوټونکے-پستۀونکے.

**ځبېدل** :- (دْ+زَ+بي+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص لا-ګڼېدل-ګُورېدل-زیاتېدل.

**ځبېدنه** :- (دْ+زَ+بي+د+نه)-[اَف:پ (قاموس) حمص]-ګڼېدنه-ګورېدنه-زیاتېدنه.

**ځبېدُونکے** :- (دْ+زَ+بي+دُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس) مف-مذ-وا-ج: ځبېدُونکي (مؤ: ځبېدُونکې]-ګڼېدونکے-ګورېدونکے-زیاتېدونکے.

**ځبښل** :- (دز+بي+ش+لْ یا خ+ل)-[اِپ-مص مت]-(۱) پـه لاسو مښل. (۲) چوپل-رس تروېستل.

**ځبښلے** :- (دز+بي+ش+لے یا خ+لے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: ځبښلي-(مؤ: ځبښلې]-(۱) په لاسو مښلے. (۲) چوپلے-رس تروېستلے.

عاشقان ئې صـد هزار دي په هرلوري
سرګشته حېران پرېشان ګونه ځبښلے (خوشحال)

**ځبښند** :- (دز+بي+ش+نْ+د+یا خ+ن+د)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-جذب کوونکے-جاذب-راکښونکے-ځبښونکے.

**ځبښنګ** :- (دز+بي+ښ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و_ ځبښنه.

**ځبښنه** :- (دز+بي+ش+نه یا خ+نه)-[اِپ-حمص]-(۱) ځبښنګ-چوپنه-مرورنه. (۲) جذب کونه.

**ځبښـونکے** :- (دز+بي+شـو+ن+کے یـا خـو+ن+ کـے)-[اِپ-فـاع-مـذ-وا-ج: جبښونکي]-(۱) مرورونکے. (۲) چوپونکے. (۳) جذب کوونکے.

**ځبښونے** :- (دز+بي+شُو+نے یا خو+نے)-[اِپ-فاع-مذ-وا-ج: ځبښوونکي-(مؤ: ځبښوونې]-جاذب-ځبښند.

**ځځبوکے** :- (د+زْ+دز+بو+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]و ـــــــ جزغاله.

**ځځغولے** :- (د+زَ+در+غو+لے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]و ـــــــ جزغاله.

**ځځېـرل** :- (دْ+ز+د+زي+د+لْ)-[اِپ (شـن)-مـص لا-څنـډول-رڅـول-جرقـول-شورول-بیداروول-وینبول.

**ځـر** :- (د+ز+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]-(۱) د دسـتونو پـه وخـت د خېتې اواز چې لاندې خېژي. (۲) د نرم پوست وچ شوي بُوتي د اور د شغلې اواز.

**ځرځ** :- (د+ز+رْ+دزْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-ززخ-سورنجن-خرېخن.

**ځرهار** :- (دْ+ز+ر+ها+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-(۱) د دستونو په وخت د خېټې په یو مخ اواز. (۲) د نرم وچ بُوتي د اور د شغلې اواز.

**ځرهار کول** :- (اَف)-اص-(۱) د دستولو پـه وخت د خېټې اواز. (۲) د نـرم اوچ بُوتي د اور د لمبې اواز.

**ځرهار کېدل** :- (اَف)-اص-(۱) د دستونو په وخت د خېټې اواز ختل. (۲) دوچ بُوتي د اور د لمبې اواز ختل.

**ځـړے** :- (د+زَ+ړے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: ځـړي (مـؤ: ځـړې]-جاسوس-څارُونکے.

**ځړېدل** :- (دْ+ز+ړي+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص لا]-د خېټې نه د باد اواز راوتل.

**ځړېدلے** :- (دْ+ز+ړي+دَ+لے)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: ځړېدلي (مؤ: ځړېدلې]-د دستولو په وخت د خېټې نه باد اوتلے.

**ځړېدنګ** :- (دْ+ز+ړي+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و ـــــ ځړېدنه.

**ځړېدنه** :- (د+ز+ړي+د+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-ځړېدنګ-د خېټې نه د دستونو په وخت بادراوتنه-ځړېدۀ.

**ځړېـدُونکے** :- (د+ز+ړي+دُو+ن+کـے)-[اَف:پ (قـاموس)-فـاع-مـذ-وا-ج:

ځړېدُونکي (مؤ: ځړېدُونکې)-پرېر کوونکے-د ښځې نه د باد اواز راتلُونکے.

**ځړېدهٔ** :- (د+ز+ړې+دهٔ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و______ ځړېدنه.

**ځړانګه** :- (دْ+ز+را+نْ+ګه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ځړانګې]- دُوندا و سیلۍ چې د لرې نه په نظر راځي.

**ځړوبه** :- (دز+ړو+به)-[اِپ-اِس-مؤ-وا]-ابشار_زاوهٔ.

**ځړوبے** :- (د+ز+ړو+بے)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج: ځړوبي]-آبشار-زاوهٔ-ځړوبه.

**ځړول** :- (د+ز+ړ+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-ځوړند کول-اوېزاندول-لکول-بندول.

**اوبهٔ په ځړول** :- (اَف)-اص)-(۱) اوبهٔ پراچول-(۲) شرمول-شرمنده کول.

**ځړولے** :- (د+ر+ړ+وَ+لے)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: ځړولي (مؤ: ځړولې)]-ځوړند کړے-اوېزاند کړے-لك کړے.

**ځړونګ** :- (دْ+ز+ړ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و______ ځړونه.

**ځړونه** :- (دْ+ز+ړ+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-ځړونګ-اوېزاندونه-ځوړند کونه-لکونه.

**ځړوُونکے** :- (د+ز+ړ+وو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-فاع-مذ-وا-ج: ځړوُونکي (مؤ: ځړوُونکې)]-اوېزاندوُونکے-لکوونکے-ځوړند کوُونکے.

**ځز** :- (دْ+زْ)-[اِپ-اِس صو-مذ]-جز-په يو ګرم څيز د اوبو يا بل نرم څيز د توئېدلو اواز-چس-ځغ.

**ځزکے** :- (دْ+ز+کے)-[اِپ-اِس-صو-مذ]-جزېدنه-په ګرم څيز د اوبو د توئېدلو پرله پسې اواز.

**ځزکي کول** :- (اص)-جزېدل-پرله پسې اوبهٔ په ګرم څيز توئېدل.

**ځـړ** :- (دْ+زْ+ژ يا دْ+ز+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-(۱) د بند يا درياب کچه غاړه چې اوبهٔ ترې بهر بهېږي. (۲) د ټوپك ډز. (۳) هغه شګه چې سيلاب ئې راوړي او يو خوا ته ئې واچوي.

**ځـړه** :- (دْ+زَ+ژه يا ګـه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ځـړې]-ورك وتے غرګے.

**ځښت** :- (دْ+ز+شْ+تْ يا د +ز+خ+تْ)-[اِپ-اِس-مذ](۱) ژشت-زښت-ناښ. هغه څوك چې د بل بدي شي. (۲) زيات-ډېر.

**ځښت کېدل** :- (اص)-(۱) زياتېدل-(۲) بدي کېدل-په ځان بدلګېدل. ژشتېدل-زښتېدل.

**ځښت ښهٔ** :- (ځښت + شهٔ يا خه)-[اِپ-ص]-ډېر ښهٔ-زيات ښهٔ-غوره.

**ځښکله** :- (د+ز+ش يا دْ+ز+خْ+ك+له)-[اِپ-اِس-مؤ]-څهٔ وخت-هغه وخت-هر کله.

**ځغ** :- (دْ+ز+غ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-و ______ ځز.

**ځغاسته** :- (دز+غا+سْ+ته)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]- زغل ترپ-منډه-درړه- ځغسنا-ځغلا.

**په يوه ځغاسته تلل** :- (اَف)-اص-په شنه منډه تلل-ډېر تېز تلل-په درړه تلل-ترپېدل-زغلېدل.

**ځغاله** :- ( دْ+ز+غا+لَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ځغالې]پېړه-د خميره دُوړې يا اوړو د هغه غونډه پېړه چې يوې ډوډۍ ته تياره کړې شي.

**ځغځه** :- (دْ+ز+غْ+دْ+زه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-ج: ځکځې]-يو قسم شين وابښهٔ چې ښناور ئې خوري.

**ځغستا** :- (دزْ+غا+سْ+تا)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ځغستاوې]-

و______ ځغاسته.

**ځغستل** :- (دز+غ+س+تَ+ل)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]- ترپ کول-په منډه تلل- دؤ کول.

**ځغستلے** :- (دز+غ+سْ+تَ+لے)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ -وا-ج: ځغستلي (مؤ:ځغستلې)]په درړه شوے-په منډه شوے-ترپېدلے.

**ځغسته** :- (دز+غ+س+ت+ته)-[اَف:پ (قاموس)حمص]-په دؤ کېدنه-ترپېدنه-په منډه تلنه.

**ځغستُونکے** :- (دز+غ+سْ+تُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اس فاع-مذ-وا-ج: ځغستونکي (مؤ: ځغستُونکې)]-ترپېدُونکے-زغلېدُونکے-په منډه تلوُنکے.

**ځغلا** :- (دزْ+غ+لا)-[اِپ-اِس-مؤ]- و______ ځغاسته.

**ځغلند** :- (دز+غ+ل+نْ+د)-[اِپ-اِس-مذ -(مؤ: ځغلنده)]-په منډه-په درړه ترېند-زغلند.

**ځغلندے** :- (دز+غ+لَ+نْ+دَ+ے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ -(مؤ: ځغلندې)-(۱) ذليل-بربوتے. (۲) عاجز-خوار. (۳) ډارز-يرندوکے-ويرېدُونکے.

**ځغلول** :- (دز+غ+ل+و+لْ)-[اِپ-مص مت]-(۱) په منډه اخستل-په ترپه کول-زغلول-وررول-وررول. (۲) په مخه اخستل-لړول-شکست ورکول.

**فکر ځغلول** :- (اص)-فکر کول-سوچ کول.

**ځغلولے** :- (دز+غ+ل+وَ+لے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: ځغلولي-(مؤ: ځغلولې)]-(۱) په منډه کړے-زغلولے په درړه کړے. (۲) لړ کړے-پا شا کړے.

**ځغلونګ** :- (دز+غ+ل+و+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و______ ځغلونه.

**ځغلونه** :- (دز+غ+ل+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و______ ځغلونه.

**ځغلوُونکے** :- (دز+غ+ل+وُو+نْ+کے)-[اِپ-فاع-مذ-وا-ج: ځغلوُونکي-(مؤ: ځغلوُونکې)]-(۱)په منډه اخستونکے-زغلوُونکے. (۲) لړوُونکے-په شاکوُونکے-شکست ورکوُونکے.

**ځغلېدل** :- (دز+غ+لې+د+لْ)-[اِپ-مص لا]-(۱) زغلېدل-ترپېدل-په منډه کېدل. (۲) لړېدل-مېدان پرېښول-شکست خوړل-په شاکېدل- ښګېل کېدل.

**ځغلېدلے** :- (دز+غ+لې+د+لے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: ځغلېدلي-(مؤ: ځغلېدلې)]-(۱) زغلېدلے-په منډه شوے. (۲) لړ شوے-شکست خوړلے- ښګېل شوے.

**ځغلېدنګ** :- (دز+غ+لې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و____ ځغلېدنه.

**ځغلېدنه** :- (دز+غ+لې+د+نه)-[اِپ-حمص]-(۱) ځغلېدنه-زغلېدنه-په منډه کېدنه. (۲) لړېدنه-شکست خوړنه-په شا کېدنه.

**ځغلېدُونکے** :- (دز+غ+لې+دُوْ+نْ+کے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: ځغلېدُونکي (مؤ: ځغلېدُونکې)]-(۱) زغلېدُونکے-په منډه تلُونکے. (۲) لړېدونکے-شکست خوړُونکے-په شاکېدُونکے.

**ځغلېدهٔ** :- (دز+غ+لې+دهٔ)-[اِپ-حمص]- و______ ځغلېدنه.

**ځغم** :- (دز+غ+مْ)-[اِپ-اِس-مذ]-(۱) حوصله-زغم-سهنه-تېر. (۲) جذب.

**ځغمل** :- (دز+غ+م+لْ)-[اِپ-مص مت]-(۱) زغمل-په ځان تېرول-برداشت کول-سهل. (۲) جذب کول-نغرل.

**ځغملے** :- (دز+غ+مَ+لے)-[اِپ-مف-م-وا-ج: ځغملي-(مؤ: ځغملې)]-(۱) زغملے-په ځان تېر کړے-سهلے. (۲) جذب کړے.

**ځغمنګ** :- (دز+غ+م+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و______ ځغمنه.

**ځغمنه** :- (دز+غ+م+نه)-[اِپ-حمص]-(۱) ځغمنګ-زغمنه-په ځان تېرونه-

سهنه. (۲) جذب کونه.

**ځغمونکے** :- (دز+غ+مُـو+نْ+کے)-[پ-فـاع-مـذ-وا-ج: **ځغمـوُنکي**-(مـؤ: ځغمـوُنکې)]-[پ-فـا-مـذ-وا-ج: **ځغمـوُنکي**-(مؤ:**ځغمـوُنکې**)]-(۱) زغموُنکے-په ځان تېرؤونکے-سهونکے. (۲) جذب کوونکے.

**ځغـول** :- (د+ز+غ+و+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-مـص مـت]-جـذول-پـه غـوږو يـا تېلوکښې سُورکول.

**ځغونځ** :- (دز+غو+نْ+دز)-[پ (ظفر)-اِس-صوت]-زغـونځ-د مچيو يا چينجو حرکت. ځغونځے.

**ځغونځ ځغونځ کول** :- (اِص)-د مچيو يا چينجو حرکت کول.

**ځغونځـاوے** :- (د+ز+غـو+نْ+د+را+وے)-[پ (ظفـر) اِس-ج]-غـونزاوے-بـې قاعدې ګڼه ګوڼه.

**ځغونځول** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زَ+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-چينجي يا نور دغه شان څيزونه په حرکت راوستل-غزول- پارول.

**ځغونځولے** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زَ+و+لے)-[اَف:پ (قاموس)-مف]-چينجے وغېره په حرکت کړے-غزولے-پارولے.

**ځغونځونـګ** :- (دْ+ز+غـو+نْ+دْ+زَ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قـاموس) حمـص]-ځغونځونه.

**ځغونځونـه** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زَ+و+نـه)-[اَف:پ (قـاموس)-حمـص]-ځغونځونګ-پارونه-غزونه- چينجي وغېره حرکت کښې راوستنه.

**ځغونځووُنکے** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زَ+وو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اَس فاع-مذ-وا-ج: **ځغونځـووُنکي** (مـؤ: **ځغونځـوونکې**)]-پـاروونکے-غـزوونکے-چينجي وغېره په حرکت کښې راوستُونکے.

**ځغونځے** :- (د+ز+غو+نْ+دْ+زے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-صوت]و___ **ځغونځ**.

**ځغونځېـدل** :- (دْ+ز+غـو+نْ+دْ+زې+د+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-مـص لا]-(۱) پارېدل-غزېدل-د مچو په حرکت کښې راتلل. (۲) څنګ په څنګ کېدل.

**ځغونځېـدلے** :- (د+ز+غـو+نْ+د+زې+د+لے)-[اَف:پ (قـاموس) مـف-مـذ-وا-ج: ځغونځېـدلي (مؤ:ځغونځېـدلې)]-پارېـدلے-غزېـدلے-پـه حرکـت کښـې راغلے.

**ځغونځېـدنګ** :- (د+ز+غـو+نْ+د+زې+د+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قـاموس)حمص]-و______ **ځغونځېدنه**.

**ځغونځېدنـه** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زې+د+نـه)-[اَف:پ (قـاموس)-حمـص]-ځغونځېـدنګ-پارېدنـه-غزېدنـه-د مچـو پـه حرکـت کښـې راتلنـه-ځغونځېدۀ.

**ځغونځېدونکے** :- (دْ+ر+غـو+نْ+دْ+زې+دُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-فـا-مـذ-وا-ج: **ځغونځېدُونکي** (مـؤ: **ځغونځېـدونکې**)] پارېـدونکے-غزېـدُونکے. مچۍ په حرکت کښې راتلونکے.

**ځغونځېده** :- (دْ+ز+غو+ن+د+زې+دۀ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و________ **ځغونځېدنه**.

**ځغېدل** :- (دْ+ز+غې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص-لا]-جزېـدل پـه غـوږو يـا تېلـو کښې څۀ سُور کېدل.

**ځک** :- (د+زَ+كْ)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: **ځکونه**]-ځك-زك-تکليف-خفګان-اواز.

**ځکلول** :- (د+زَ+كْ+لْ+و+لْ)-[اَف:پ (قـاموس) مـص مـت]- خفـا کـول- ناراضـه کول-زك رسول- جکول-اوازول.

**ځکلولے** :- (د+ز+كْ+ل+و+لے)-[اَف:پ (قـامموس)-مـف-مـذ-وا-ج: **ځکلـولي**-(مؤ: ځکلولې)]-خفه کړے-ناراضه کړے-اواز کړے-جکولے.

**ځکلونګ** :- (دْ+ز+كْ+ل+و+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و__ **ځکلونه**.

**ځکلونه** :- (دْ+ز+كْ+لْ+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-ځکلونګ-خفـه کونـه-اوازونه-ناراضه کونه-جکونه.

**ځکلوُونکے** :- (دْ+ز+كْ+ل+وُ+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-فـاع-مـذ-وا-ج: ځکلوُونکي (مؤ: **ځکلووُنکې**)]-ناراضه کووُنکے-جکووُنکے.

**ځکلېدل** :- (دْ+ز+كْ+لې+د+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-مـص لا]-خفـه کېـدل-ناراضـه کېدل-اوازېدل-جکېدل.

**ځکلېدنګ** :- (دْ+ز+كْ+لې+د+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و___ **ځکلېدنه**.

**ځکلېدنـه** :- (دْ+ز+كْ+لې+د+نـه)-[اَف:پ (قـاموس)-حمـص]-ځکلېـدنګ-اوازېدنه-ځکلېدۀ-تکليف رسېدنه-جکېدنه.

**ځکلېـدُونکے** :- (دْ+ز+كْ+لـې+دُو+ن+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: ځکلېدُونکي-(مؤ: **ځکلېدُونکې**)]-جکېدُونکے-اوازېدُونَکے.

**ځکلېدۀ** :- (دْ+ز+كْ+لې+دۀ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و_______ **ځکلېدنه**.

**ځکدن** :- (د+ز+ك+دَ+نْ)-[پ-اِس-مذ]-ځنکدن-زنکدن-د ساه وتلو حالت-د مړېدو وخت.

**ځکه** :- (دْ+ز+که)-[پ-کلمه]-په دې وجه-په دې سبب-له دې کبله.

چې وفـا ئې له چا نۀ مونده په مزکه
و اسمان وته روان شو عيسي ؑ ځکه (خوشحال)

**ځګ** :- (دْ+زَ+ګْ)-[پ-ه: جهاګ-اِس-مذ-وا-ج: **ځګونه**]-دګ-د اوبو د پاسه سپين شان څيز چې د اوبو د پاسه يا د ژوندي سړي د خولې نه اوځي-د صابون په مښلو هم نزدې کېږي.

لکـه ځـګ چې د اُوبو په سرليدۀ شي
که ئې واخلې هېڅ درنۀ شي په چنګال (رحمٰن)

**ځګ پرېښول** :- (اِص)-ځګ کول-ځګ-خوټول.

**ځګ خوطول** :- (اِص)-ځګ کول-ځګ راختل-ځګ پرېښول.

**ځګ غورزول** :- (اِص)-ځګ تويول-د خولې نه ځګونه تويول.

**ځګ کول** :- (اِص)-و_______ ځګ پرېښول.

**ځګال** :- (د+ز+ګا+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-پـه ښـوروا کښـې ماتـه کړې شوې ډوډۍ-واړه مړۍ-پېنډه تربل.

**ځګـر** :-(دْ+زِ+ګَ+رْ)-[پ-فـا:جګر-اِس-مـذ-وا-ج: **ځګرونـه**-ځګـرے](۱) اسينه-ينه.

خپل ځګر که ناصح وريت کا پرې ئې وخوري
سُـود نـۀ رسـي د جـهـل و شـمکورتـه (علي خان)

(۲) ټټر-سينه. (۳) خوږ-زړۀ ته نزدې.

**ځګـر وينـي کـول** :- (اِص)-غـم کـول-تکليـف تېـرول-د چا پـه غـم کښـې زيـات کړېدل.

هاله ياد کړم په بوسه خونخوارو شونډو
چـې د پـانـو په څېر ويني کۀ ځګرما (حميد)

**ځګر وينې کېدل** :- (اِص)-ډېر کړېدل-زيات تکليف رسېدل-ستړے ستومانه کېدل-د چا په غم کښې تولېدل.

**ځګرخون** :- (ځګر+خُو+نْ)-[پ-فا:جګرخون-اِس-مذ]-د ځګر وينې-غم-فکر-کړاؤ-تکليف.

په ميدان کښې توئې ښې دي د سر وينې
نـۀ چـې ډکـه سينه وړې له ځګرخونه (خوشحال)

**ځګرخون کول** :- (اص)-زړهٔ خوړل-غم کول-نولېدل.

**ځګرور** :- (د+ز+ګ+رَ+و+رْ)-[اپ-اس ص-مذ (مؤ-وا: ځګروره-ج: ځګرورې)]-بهادر-تورزن-نر-تکړه.

بل بـــه نـــهٔ وي لکه تهٔ ئې
هسې شـــوخ او ځـــګرور (رحمٰن)

**ځګلانه** :- (دْ+ز+ګْ+لا+نه)-[آف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا]-غرکه-هغه ګوډې چې تروې يا لسې په کنبې شاربلې شي.

**ځګلن** :- (دْ+ز+ګْ+ل+نْ)-[اپ-اس-ص-مذ (مؤ-وا-ځګلنه-ج: ځګلنې)] زګ لدُونکې، زګ دار.

**ځګېدل** :- (د+ز+ګې+د+لْ)-[آف:پ (قاموس)-مص لا]-زګېدل-زګ ختکول-زګ پرېښول.

**ځګېروي** :- (د+ز+ګې+رْ+وي)-[اپ-اس-مذ]-زګېروي-فرياد-زبېرګي.

**ځل** :- (دْ+زَ+لْ)-[اپ-اس-مذ] (۱) زل-وار-نوبت. (۲) زلق-چنېك-پنېك-ځلا (۳) سخته تنده.

**ځل وهلې** :- (اص)-ډېر تږې شوې-د تندې منجد حاله.

په اوبو باندې بنهٔ موړ شو
ځل وهلې زړهٔ ئې سوړ شو (اسماعيل قمر)

**ځل** :- (دْ+زَ+لْ)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: ځلان]-د ښاروې د شاکپره- زل-جول.

مور دې ځل پلار دې ګونې
له چا پېدا شوې شين خالې (کاکړې لنډۍ)

**ځل پرايښودل** :- (آف)-اص-په چا ځل اچول-څوك مطيع كول.

**ځلا** :- (دْ+ز+لا)-[اپ-اس-مؤ]-زلق-چنېك-پنېك.

**ځلان** :- (دْ+ز+لا+نْ)-[اپ-ص-مذ-(مؤ-وا: ځلانه-ج: ځلانې)]-ځلاند -روښانه-پرقېدُونکې-چنګېدُونکې.

**ځلاند** :- (دْ+ز+لا+نْ+دْ)-[اپ-ص-مذ]-مؤ-وا: ځلانده-ج: ځلاندې]او___ ځلان.

**ځلان کول** :- (اص)-ځلول-روښانه کول-چنل کول-پرتول.

**ځلاند کېدل** :- (ځلېدل-روښانه کېدل-چنګېدل-پرقېدل.

**ځلبل** :- (دْ+زَ+لْ+بَ+لْ)-[اپ-ص-مذ -(مؤ: وا: ځلبله-ج: ځلبلې)]-زلقېدُونکې-روښانه- چن کېدُونکې-پنکېدُونکې.

**ځلبل کول** :- (اص)-زلقول-چنکول-برېښول-پنکول.

**ځلبل کېدل** :- (اص)-زلقېدل-چنکېدل-برېښېدل-پنکېدل.

**ځلبلاند** :- (دْ+زَ+لْ+بَ+لا+نْ+دْ)-[اپ-ص-مذ(مؤ-وا: ځلبلانده-ج: ځلبلاندې)]-بې ارامه-پرېشانه-بې قراره-غمجن.

څو مينې ئې کړې قرارې
چې په غم وې ځلبلاندې (خوشحال)

**ځلبلاند کول** :- (اص)-بې ارامه کول-پرېشانول-غمجن کول.

**ځلبلاند کېدل** :- (اص)-بې ارامه کېدل-پرېشانه کېدل-غمجن کېدل.

وبنهٔ مخ وته له ورايه ځلبلاند شم
لکه وويني لو غسې تال په سترګو (خوشحال)

**ځلبلانـدول** :- (دْ+زَ+لْ+ب+لا+نْ+د+و+لْ)-[اپ-مص مت]-پرېشانه کـول-بې ارامه کول-ناقلاره کول-غمجنول-ځلبلانول.

**ځلبلاندونه** :- (دْ+زَ+ل+ب+لا+نْ+د+و+نه)-[اپ-حمص]-پرېشان کونه-بې ارامه کونه-نا قلاره کونه- غمجنونه.

**ځلبلانـدوُونکې** :- (دْ+زَ+لْ+ب+لا+نْ+د+وُ+نْ+کې)-[اپ-اس-فـاع-مـذ-وا-ج: ځلبلاندوُونکې (مؤ: ځلبلاندوُونکې)]-پرېشانه کوونکې-غمجنوونکې.

**ځلبلاندېـدل** :- (دْ+زَ+لْ+ب+لا+نْ+دې+د+لْ)-[اپ-مـص لا]-پرېشـانه کېـدل-غمجن کېدل-ځلبلازېدل.

**ځلبلاندېدنـه** :- (دْ+زَ+لْ+ب+لا+نْ+دې+د+نـه)-[اپ-حمـص]-پرېشـانه کېدنـه-ناقلاره کېدنه-بې ارامه کېدنه-غمجن کېدنه.

**ځلبلاندېـدُونکې** :- (دْ+ز+لْ+ب+لا+نْ+دې+دُو+نْ+کې)-[اپ-مـف-مـذ-وا-ج: ځلبلاندېدُونکې-(مؤ: ځلبلاندېدُونکې)]-پرېشـانه کېدُونکې-بې ارامه کېدُونکې-ناقلاره کېدُونکې-غمجن کېدُونکې.

**ځلبلانـــول** :- (دْ+ز+لْ+ب+لا+ن+و+لْ)-[آف:پ (قـاموس)-مـص مـت]او___ ځلبلاندول.

**ځلبلانېـــدل** :- (ر+ز+ل+ب+لا+نـــې+د+ل)-[آف:پ (قـــاموس) مـــص لا]او___ ځلبلاندېدل.

**ځلبلـې** :- (د+ز+ل+ب+لې)-[آف:پ (قاموس) اس ص-مذ-وا+ج: ځلبلې (مؤ: ځلبلې)]-روښانه-پرقېدُونکې-چنکېدُونکې-پنکېدُونکې.

**ځلښت** :- (د+ز+لْ+ش+ت يا ل+ خ+ت)-[اپ-ص-مذ]- زلق-چنېك-پرق-چمك-ځلا-پنېك.

**ځلک**:- (ز+لْ+ک) [اپ-اس- مذ] برېښنا- ځلا- ځلکا-رڼا- پرک- ځرک، نور

**ځلکول** :- (د+ز+لْ+ك+و+ل)-[اپ-مص-مت]-زلقول-برېښول-چنکول-پرقول-ځلول-پنکول.

**ځلکېـدل** :- (د+ز+لْ+کې+د+ل)-[اپ-مص لا]-زلقېدل-پرق کول-چنکېدل-برېښېدل-ځلېدل- پنکېدل.

**ځلل** :- (دْ+ز+ل+ل)-[آف: پ (قاموس)-اس-مذ]-ضرر-نقصان-ظلم.

**ځلمې** :- (دْ+زَ+لْ+مې)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: ځلمې-ځلميان-(مؤ: وا: ځلمې-ج: ځلميانې)]-(۱) ځوان-ځوانې ته نزدې-زېلې-زېې- ژنې (۲) وز-ساتلې شوې هلك.

**ځلميتوب** :- (دْ+زَ+لْ+يْ+تو+ب)-[اپ-اس-مذ]-ځوانې-زلميتوب-ځلمينه.

**ځلمينه** :- (دْ+زَ+لْ+يْ+نه)-[آف:پ (قاموس)-اس-مؤ]او_____ ځلميتوب.

**ځلنـد**:- (د+ز+ل+ن+د)-[اپ-ص-مـذ]-مـؤ-وا:ځلنـد-ج: ځلنـدې]-(۱) ځلانـد-روښانه.

**ځلنـــدوکې** :- (د+زَ+لْ+نْ+دُو+کـې)-[اپ-اس ص-مـــذ-واج: ځلنـــدوکې-مـــؤ: ځلنـــدُونکې]-روښـــان-برېښـــېدونکې-پرقېـــدونکې-چنکېـــدونکې-زلقېدونکې.

**ځلـــوبې** :- (د+ز+لـــو+بې)-[اپ-ه:جلبېـــې-اس-مـــؤ]-يوتـــاؤ راتـــاؤ مشـــهور خوارهٔ-زلېبې.

**ځلوکـه** :- (د+ز+لُو+کـه)-[آف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ-وا-ج: ځلـوکې]-د زړهٔ رګونه.

**ځلـول** :- (دْ+زَ+لْ+و+لْ)-[اپ-مـص مـت]-زلقـول-پرقـول-چنکـول- برېښـول-پنکول. ځلکول.

**ځلولـې** :- (دْ+زَ+ل+و+لـې)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ځلولې- (مؤ:ځلولې)]- زلقولې-پرقولې-چنکولې-برېښولې-پنکولې.

**ځلون** :- (د+ز+لُو+نْ)-[آف:پ (قاموس)-اس-مذ]-د اُوبو لـوې مشك چې په تېتو يا اس وړلې شي-رابيا.

**ځلونګ** :- (دْ+زَ+لْ+و+نْ+ګْ)-[آف:پ (قاموس)-حمص]او_____ ځلونه.

**ځلونـه** :- (دْ+زَ+ل+و+نـه)-[اپ-حمـص]-زلقونـه-پرقونـه-چنکونـه-برېښـونه-پنکونه.

# ځ

**ځ** :- (دْزِيْمْ)-[اپ-حرف]-د پښتو ژبې د الف بې د پټۍ اتم تورے دے دا ټکے په پښتو ژبه کښې د هغه لفظونو په ليک کښې استعمالېږي کوم چې په فارسي ژبه کښې په ج ليکلي کېږي. لکه جگر نه ځيگر-جان نه ځان-خو اکثر د پښتو په زړو کتابونو کښې دا ټکے په غلطه املا ليکلے کېږي.

**ځا** :- (دْزا)-[اپ-امر]-د تلل مصدر نه فعل امر-د غصې په حالت کښې هائې مختفي په الف بدله شي او د ځه نه ځا شي-ځه-درُومه.

**ځاځل** :- (دْزا+دْز+لْ)-[اپ-مص مت]-غصه کول-په سوخت کښې ځوك ځنډل.

**ځار** :- (دْزا+رْ)-[اپ-اس]-(۱) جار-قربان-جيو. (۲) د پښتو ټپې د وئيلو نه وړاندې سندر غاړے يکه ځار ضرور وائي.

**ځار ځار** :- (ځار+ځا+رْ)-[اپ-اِس-صو]-(۱) قربان قربان-جار جار. (۲) ژړا فرياد.

**ځار ځار کول** :- (اِص)-جار جار وئېل.

**ځارول** :- (دْزا+ر+و+لْ)-[اپ-مص مت]-جارول-قربانول-نثار کول.

**ځارونه** :- (دْزا+ر+و+نه)-[اپ-حمص]-جارونه-قربانونه.

**ځاروُونکے** :- (دْزا+رَ+وُو+نْ+کے)-[اپ-اس فاع-مذ-وا-ج: ځاروُونکي (مؤ: ځاروُونکې)]-جاروُونکے قربانوُونکے.

**ځارېدل**:- (دْزا+رې+د+لْ)-[اپ-مص لا]-جارېدل-قربانېدل.

ځۀ شو کـه تر سل ځله ځارېږي په ساعت کښې
گـگل د بـلـبـلانـو پـه چـغار نۀ زهيرېږي (فاضل)

**ځارېدنه** :- (دْزا+رې+د+نه)-[اپ-حمص]-جارېدنه-قربانېدنه.

**ځارېدُونکے** :- (دْزا+رې+دُو+نْ+کے)-[اپ-فاع-مذ-وا-ج: ځارېدُونکي (مؤ: ځارېدُونکې)]-جارېدُونکے-قربانېدُونکے.

**ځاړل** :- (دْزا+ړ+لْ يا گ+لْ)-[اپ-مص مت]-گرول شوکارول-نوکارول.

اور لـري پـه مخ کښې چې په تامئېن کېدلم
مـابـه پـه دا بـلـه لـمبۀ نه زړۀ ځاړۀ (خوشحال)

**ځاړلے** :- (دْزا+ړ+يا گ+لے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ځاړلي-مؤ: ځاړلې]-گرولے-شُوکارولے-نُوکارولے.

**ځاړنه** :- (دزا+ړ+نه يا گ+نه)-[اپ-حمص]-گرونه-شوکارونه-نوکارونه.

**ځـاړوُنکے** :- (دزا+ړوُ+نْ+کے)-[اپ-اس فـاع-مـذ-وا-ج: ځـاړوُنکي (مـؤ: ځاړوُنکې)]-گروُونکے-شُوکاروُونکے-نوکاروُونکے.

**ځاگۍ** :- (دزا+گۍ)-[اپ-اِس-مؤ]-د غنمو د گېډولۍ يا کېته.

**ځالگۍ** :- (دزا+لْ+گۍ)-[اپ-اِس-مؤ]-جاله-بنځولے-ځالۍ-د اوسېدو ځاے-د ځاله اسم تصغير.

**ځاله** :- (دْزا+له)-[اپ-اس-مؤ-وا-ج:ځالې]-جاله-منجاله-بنځولے.

توري سترگې ئې تور زاغ دے
را نـزدې د بـاز لـه ځـالـې (خوشحال)

**ځالۍ** :- (دزا+لۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-ځالگۍ.

**ځام** :- (دزا+مْ)-[اپ-کلمه]-دزۀ وايم مخفف.

**ځان** :- (دزا+نْ)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: ځانونه]-(۱)تن-وجود-جسم.

کـه ژړا بـڅ کـړے نـۀ وے پـرې به پوخ وُم
ستا د مخ په تېرۀ اور مې شۀ درست ځان وريت (علي خان)

(۲) ساه-دم-رُوح. (۳) معشوقه-د زړۀ ټوټه-خوږ.

**ځان اورته اچول** :- (اِص)-(۱) ځان اور ته ورغورزول. (۲) ځان په تکليف کښې گېرول.

عاشقي په اختيار نۀ کېږي هوښيار شه
ځـان واورتـه اچول اختيار د چا دے (حميد)

**ځان ايغرگېل** :- (اَف)-اِص-ځان لوے سړے شمارل-ځان په څۀ کښې حسابول.

**ځان بائېلل** :- (اِص)-ځان قربانول-ځان ختمول-ځان مړول.

ستا د حسن لشکر راغے ځان ئې بـائېلو
د عـاشق د زړۀ مېدان هر گوره تنگ دے (تيمور شاه)

**ځان بدلول** :- (اِص)-(۱) د يو ځاے نه خپله تبديلي کول. (۲) خوي بوي بدلول. (۳) د اشنا سړي سره د غېږو سلوك کول. (۴) مغرورتيا ښکاره کول.

**ځان پر کتل** :- (اِص)-ځان په څۀ ځيز ازمائېل-کوشش کول.

**ځان پـروژل** :- (اِص)-(۱) ځان پـرې قتلول. (۲) پـه څۀ کـار کښې ډېره زياته خواري کول. (۳) د چاسره ډېره زياته مينه کول. (۴) ډېر خوړل.

**ځان پړسول** :- (اِص)-(۱) خفه کېدل-مرورېدل. (۲) ځان لوے سړے شمارل ډډېدل-غټېدل-تکبر کول.

**ځان پل کول** :- (اِص)-زغم او برداشت ښکاره کول.

**ځان پورته پورته کول** :- (اِص)-(۱) په لافو شافو خپل ځان تورزن لائق او لوے سړے ښلل. (۲) غصه کول-د غصې له کبله ټينگ ټينگ کېدل.

**ځان پـورې خنـد کـول** :- (اِص)-پـه خپـل ځـان پورې په خپلـه خندا کـول-ځـان شرمول.

**ځان په جلته کښې ورسره اچول** :- (اَف)-اِص-ځان په جوال کښې ورسره اچول-د چا په دعويٰ يا لانجه کښې ځان ور گډول.

**ځان په جوال کښې ورسره اچول** :- (اَف)-اِص-و ـــ ځان په جلتـه کښې ورسره اچول.

**ځان په ډُوك کول** :- (اِص)-ځان کړول-تکليفونه زغمل.

ځان په ډُوك کړه علي خانه زده سلوك کړه
هـلـه غـواړه د دلـدار لـکه د تـار ملا

**ځان په ډډه کول** :- (اِص)-ځان يو طرف ته کول-د يو ځاے نه غړېدل-په څۀ کار غم غرض نۀ کول.

**ځان په گوته ځنډل** :- (اِص)-ډېره صفائې کول-ډېره نازك مزاجي ظاهرول-په ځان ډُوړه نۀ پرېښول.

چـې پـه گـوتـه ځان ځنډي له زيانه تښتي
دا سپين چرگ دے له بانگيانو حساب نۀ دے (علي خان)

**ځان په يوه او په بله کول** :- (اص)-(۱) يو طرف ته او بل طرف ته ځان کول. (۲) د څهٔ کار نه خپل ځان په انه بانه بچ کول.

**ځان تلل** :- (اص)-(۱) د ځان تول کول-(۲) خپل زور يا برکت کتل.

**ځان ته ترښځ وهل** :- (اص)-ځان ته تېشه وهل.

**ځان ته تېشه وهل** :- (اص)-ځان ته ترښځ وهل-خپل ځان ته ګټه کول-د خپلې ګټې خيال ساتل.

**ځان ته ځان نهٔ وئېل** :- (اص)-(۱) د خپل ځان نه بې پروا کېدل. (۲) د خپل صحت خيال نهٔ ساتل. (۳) په څهٔ صحت خيال نهٔ ساتل. (۴) په څهٔ کار کښې ډېر محنت او کړاؤ کول.

**ځان ته خوړل څښل** :- (اص)-يواځې خوراك څښاك کول.

**ځان ته رغېدل** :- (اص)-ځان ته وئېدل-ځان سره خبرې کول.

**ځان ته غره کېدل** :- (اَص)-مغروره کېدل-تکبر او لوے ښکاره کول.

**ځان ته کتل** :- (اَص)-(۱) خپل ځان ځيرول. (۲) خپلې فايدې ته کتل. (۳) خپل سمې ته کتل. (۴) خپل وس ته خيال کول. (۵) د خپلې ځېرې يا جامې په تماشه کېدل.

**ځان ته کول** :- (اص)-(۱) ځان ته رانزدې کول. (۲) د ځان د پاره ګټل. (۳) خپلې پرې جنبې ته را اړول. (۴) په ټګۍ تېورۍ څهٔ ځيز ځان ته حاصلول.

**ځان ته ګوته نيول** :- (اص)-(۱) ځان په څهٔ کښې شمارل-ځان لوے سړے خيالول. (۲) ځان بدنامول.

**ځان ته لګيا کول** :- (اص)-جدا په کار اخته کول-يواځې او بېله کار ورسپارل.

**ځان ته لګيا کېدل** :- (اص)-جُدا په کار اخته کول-يواځې او بېله کار ورسپارل.

**ځان ته لګيا کېدل** :- (اص)-يواځې په کار شروع کېدل.

**ځان ته وئيدل** :- (اص)-و______ ځان ته رغېدل.

**ځان ټل کول** :- (اص)-د چا سره په څهٔ کار کښې شريك کېدل-چاسره انډيوالي ګډول.

**ځان تهولول** :- (اص)-(۱) ځان ګرډول-خپلې جامې ځان ته رانزدې کول. (۲) د چاسره تګ را تګ پرېښودل.

**ځان جوړول** :- (اص)-(۱) څهٔ کار ته ځان تيارول. (۲) سر ځنې کول-خپل ځان ډولے کول. (۳) په ښو خوراکونو ځان ځربول. (۴) مال پېدا کول.

**ځان جهان** :- (اص)-ځان او دنيا.

هېڅوك به دريغ نهٔ کا ځان جهان ځنې په صبر
وويـنـي که دا حسن جمال دلجوئي دا ستا (حميد)

**ځان ځارول** :- (اص)-ځان قربانول-ځان صدقه کول.

**ځان ځان ته** :- (اص)-خپل خپل ځان ته-بېله بېله-يواځې يواځې-ګوښې ګوښې.

**ځان ځايول** :- (اص)-ځان ته ځاے کول-ځان ته ځاے پېدا کول-جمعې ته ځان ورګډول.

**ځان چاسره نهٔ برابرول** :- (اص)-(۱) خپل ځان د خلقونه اوچت او لوے شمارل. (۲) د چاسره سيالي نهٔ کول.

**ځان ځرګندول** :- (اص)-ځان ښکاره کول-کمال ښودل.

ستا خـويونه به په خپله ځان ځرګند کا
زهٔ بـه څـهٔ وائـم چې تهٔ له بلا تېرې (رحمن)

**ځان ځنډول** :- (ب-خ)-اِص-ځان ګچول-ځان راکښل-د څهٔ کار د پاره ځان جوړول.

**ځان خلاصول** :- (اص)-(۱) ځان د قيد يا د بندش نه ازادول. (۲) ځان ازادول.

د يـوې فتنې نـه ځـان پـه دعا خلاص کړم
فـلـك بـيا نـوې فتنې که را بر ځېرې (خوشحال)

(۳) څهٔ کار په ښهٔ شان نهٔ کول. (۴) انې بانې کول.

**ځان خلاصېدل** :- (اص)-د څهٔ ذمه وارۍ نه خلاصے موندل-د څهٔ مصيبت نه ازادېدل.

**ځان خوارول** :- (اص)-(۱) د ځان غريبول پېسې بربادول. (۲) کړېدل-ځان ته تکليف رسول.

رضـا و سـپاره قـضات فـراغت شه
او کـه نور څهٔ نور څهٔ وائي ځان به خوار کړي (رحمن)

**ځان خوړل** :- (اص)-(۱) غم فکر کول. (۲) ځان کړول.

چې د ظـلـم په کر دې تل ميدان خوړ
دماغي ځان ته غره خود به د ځان خوړ (حميد)

**ځان خوږول** :- (اص)-(۱) ځان زخمي کول-ځان ژوبلول-(۲) د چاسره په څهٔ کا کښې ډېره همدردي او مرسته کول.

**ځان خوږول** :- (اص)-چا ته ځان ورنژدې کول-چاسره خوږې خوږې خبرې کول او بيا کار ترينه ايستل.

**ځان خوندي کول** :- (اص)-(۱) ځان محفوظ کول-پټېدل. (۲) په يو ګوټ کښې کښېناستل يا بهر ته نهٔ راوتل. (۳) دا ستوګنې ځاے پېدا کول.

**ځان د پاسه** :- (اص)-دځان نه لوے ځان نه اوچت.

**ځان ډُورې دورې کول** :- (اص)-(۱) ځان ډډې ډډې ته کول. ځان ساتل. پټېدل. (۲) بانې لټول.

**ځان ډډې ډډې ته کول** :- (اص)-و____ ځان ډُورې دورې کول.

**ځان ډوبول** :- (اص)-ځان غرقول.

ولې ځان پر ډُوبوې ورته دربړې
ښکلي مخ ته يو نظر که ځا ګذر (حميد)

**ځان رسوا کول** :- (اص) ځان شرمول. ځان بې عزته کول. بې حيائي کول.

عشق د مشك پټول نهٔ شي تيمور شاه
چې په خپله ځان رسوا کا هغه رنګ دے

**ځان ژړل** :- (اص)-د ځان غم کول-خپل فکر کول.

چې مئين ددلبرانه چې جمال شوې
اے رحمانه ځان وژاړه کوك په کوك

**ځان ژغورل** :- (اص)-ځان ساتل-ځان بچ کول-ځان په ډډه ساتل.

ليلا له خياله ښوري سر تا قدم له نازه
مجنون څخه ځان ژغوري سر تا قدم له نازه (علي خان)

**ځان ساتل** :- (اص)-(۱) ځان ژغورل-ځان بچ کول.

ځان ساته له وينو چې د ځان پر ککړ نهٔ شي
تهٔ چې قصابيك وے مدام د لاس ترليو (علي خان)

**ځان ساټ و باټ کول** :- (اف)-اص- ځان ښه ډولے کول-سر ځنې په ښهٔ شان کول-تيم ټپس برابرول.

**ځان سپارل** :- (اص)-ځان حواله کول-د چا پړې ته غاړه کښېښودل.

علم تا بيائې په پورته جهل تا بيائې په کښته
يا عيسي لره وردرومه يا قارون ته ځان سـپاره (خوشحال)

**ځان سپمول** :- (اص)-ځان روستو روستو کول-څهٔ خبرې نه يا د څهٔ کار کولونه

ځان بچ كول.

**ځان سپينول** :- (اص)-ځان صفا كول-د ځان صفائي كول.

دتوبې درياب ئې تا وته پيدا كړۀ
سپين كړه ځان عبدالقادر لاد مخ

**ځان ستائيل** :- (اص)-د ځان تعريف كول-خپله او چته وئيل.

**ځان سترے كول** :- (اص)-ځان كړول-تكليف تېرول.

ډېر دې ځان دے په دا صبر سترے كړے
بـارې نـۀ شم ستا له مخه نظر ژغړے (حميد)

**ځان سختي ته نيول** :- (اص)-ځان تكليف او كړاؤ تـه تړل- د زيار او باسلوزم پيدا كول.

پــه جهان كښې كــه مردان دي هم هغه دي
چــې و ســختې وتــه ونـيسي ځانونه (خوشحال)

**ځان سانبالول** :- (اص)-(۱) ځان تيارول ځان ښكلے كول. (۲) ځان د څۀ افت يا تكليف نه بچ كول. (۳) اختياركول.

**ځان سورچخوكے كول** :- (اَف)-اِص)-و_____ ځان سرې غوښې كول.

**ځان سيند ته اچول**:- (اص)-ځان پـه سيند كښې لاهو كـول. (۲) ځان تـه نقصان رسول-ځان تاواني كول.

**ځان شمارل** :- (اص)-ځان شمېرل. ځان حسابول. ځان په څۀ كښې ګڼل.

د خلـوت لـه عـزيزانو مې زړۀ تورشو
ځان مې وشمارو د تركو په ګوندي بيا (حميد)

**ځان شمېرل** :- (اص)-و________ ځان شمارل.

د مطلوب له طالبانو چې ځان شمېرې
اے رحمن اول سيال شه بيائې مومه

**ځان صدقه كول** :- (اص)-ځان قربانول-ځان ځارول-د چا د پاره خپـل سروركول-ځان لوګے كول.

**ځان غښول** :- (اص)-(۱) ځان ځربول. (۲) ځان مغرورول-لوے كول.

چې د دين دانائي نۀ لرې پــه زړه كښې
بيهوده ځـان غښوې په خولۀ ئې پوهه (حميد)

**ځان فرشته كول** :- (اص)-ځان پاكول-ځان په ښو او نېكو خلقو كښې حسابول.

كه شيخ ځان و علي خان ته فرشـــته كه
په خلوت كښې غېرې چارې كاندې پټ

**ځان قربانول** :- (اص)-و________ ځان صدقه كول.

**ځـان كتـل** :- (اص)-ځان تلل-پـه څۀ كـار خپـل ځـان ازمائيـل- د ځـان انـدازه اخستل.

**ځان كښل** :- (اص)-ځان لرے كول-يو ځـاے نـه پټـښې ايسـتـل-پـه څۀ كـار ځـان ناغرضه كول.

**ځان كناره كول** :- (اص)-يو طرف ته كېدل-جدا كېدل-چاته نزدې نۀ ورتلل-ځان ګوشه كول.

چې وېش وي د شكرو ډېر عالم ور بـاندې تـول شي
چــې واخـلي خـپلې برخې نـور ځانـونه كناره كا (خوشحال)

**ځان كېنول** :- (اص)-ځان كوڼ اچول.

**ځان ګوتل** :- (اص)-(۱) ځان وهل. (۲) ځان ساتل-ځان بچ كول.

دا د عشق طاعوني رنځ بـه ئې ارمان شي
كـه د زهـد ځان كوتلي شي ژوندي بـيا (حميد)

**ځان كوڼ اچول** :- (اص)-په څۀ خبره ځان نـا غرضـه كـول-ځـان كېنول-بې پروائي ښكاره كول-ځان نا پوهه كول. ځان نا خبره كول.

**ځان ګچول** :- (ب،خ)-اص-و_____ ځان ځنډول.

**ځان ګرانول** :- (اص)-چاته ځان خوږول په چا خپل ځان عزيز كول.

**ځانګ وشه كول** :- (اص)- و_____ ځان كناره كول.

خوچې عشق په زړۀ يشته كه عقل دروي ځان ګوشه كه
هم پــه دا چــې دهـتيانو در منځ ځوككاندِ كش كيش (حميد)

**ځان لرې اچول** :- (اص)-(۱) ځان په څۀ نۀ خبرول-ځان لرې شمارل. (۲) پـه ګوټ كښې كښېناستل. (۳) وطن پرېښودل.

**ځان لوګے كول** :- (اص)-و_____ ځان صدقه كول.

چې تر ځان ئې لوګے كړے قربانېږي
د جفا په اور د سوځي لكه سپانده (عبدالقادر خان ختك)

**ځان له اوله ايستل** :-(اص)-ځـان د عقل او اندازې نـه بهر كـول-ډېـره لـوے او كبر كول.

**ځان لېونے كول** :- (اص)-ځان پاګل كول-ځان خامخا غصه كول.

**ځان مسخره كول** :- (اص)-ځان شرمول-ځان پورې ټوقو كول.

په كُــوم تَــنګ او په كُوم شرم نۀ پوهېږم
ما په عشق كښې ځان د خلقو مسخره كـۀ (حميد)

**ځان ملامت كول** :- (اص)-په خپل ځان په خپله بد وئيل-ځان ګرمول.

چې نـور خلق ملامت در باند وائي
لاپــخوا تر خلقو خپل ځان ملامت كا (رحمان)

**ځان من بلل** :- (اص)-ځان دروند ګڼل-ځان لوے سړے شمارل.

**ځان من من كول** :- (اص)-ځان من من ګڼل-ځان لوے شمارل-ځان من بلل.

**ځان من من ګڼل** :- (اص)-و_______ ځان من من كول.

**ځان ناپوهه كول** :- (اص)-ځـان نـاخبره كـول-ځـان نـاخبره سـاتل- ځـان نـاغرضـه كول-په څۀ خبره ځان قصداً نۀ پوهه كول.

هم هـغه د مـحبت په رموز پوه شو
چې ئې ځان له خپلې پوه كړه نا پــوهـ (حميد)

**ځان ناپوه ګڼل** :- (اص)-ځان كم عقل شمارل.

**ځان ناخبره ساتل** :- (اص)-ځان نا خبره لـرل-ځـان خامخـا د څۀ خبرې نـه نـۀ واقف كول.

**ځان ناخبره كول** :- (اص)-و ______ ځان ناپوهه كول.

**ځـان نـاخبره سـاتل** :- (اص)-ځـان نـا خبـره لـرل-ځـان خامخـا د څۀ خبرې نـه نـۀ واقف كول.

**ځان ناخبره كول** :- (اص)-و ______ ځان ناپوهه كول.

**ځان نغښتل** :- (اص)-ځان راټولول-تعلق پرې كول- ځان جدا كول.

هسې ځان له بې وفا عالم نغاړي
چې ماهم نۀ دے ليدلے زما روح (علي خان)

**ځان نيول** :- (اص)-ځان ټينګول-ځان مضبوطول-د زغم طاقت پېدا كول.

د عزت ترخوته ځان نيولے نۀ شې
په خوږ و پسې د مچ غوند ګرځانده (عبدالقادر خان ختك)

**ځان وچ ايستل** :- (اص)- ځان صفا ايستل-ځان د ذمه وارۍ نه بچ كول.

**ځان ورته تريخول** :- (اص)- ځان غصه كول-چانه سخت كار اخستل.

**ځان ورك كول** :- (اص)-(۱) د يو ځـاے نه پناه كېدل.

پــه هــوا پسې د نفس سر هوا مه شه
ځان به ورك كړې لكه برق په داشتاب (حميد)
(۲) خپل نقصان کول. (۳) بې ځایه لوئي او کبر کول.

**ځان ورک کېدل** :- (اِص)-مغرورېدل-کبرجن کېدل.

**ځان ورکول** :- (اِص)-(۱) ځان حواله کول. (۲) چارپاره قرباني کول.

**ځان وژل** :- (اِص)-(۱)خپل ځان مړ کول-خودکشي کول. (۲) په ځۀ کار کښې زيات کوشش کول.
چې د عشق په جهل ځان وژني وګړے
کاش که زۀ عبدالحميد هغه پښتون شم

**ځان وهل** :- (اِص)-ځان ټکول-ځان ډبول-ځان ته ځپیړې د اخلاصول.
اوس که ځان وهم که خاورې په سرلونم
په هېڅ رنګ په بېرته نۀ راځي وارتېر شو (علي خان)

**ځان وېستل** :- (اِص)-ځان وباسل-ځان خلاصول.
د دنــيا لــه کــاروبــار ځان وباسه
ځان وباسه په احتیاط له دې چیکړې (خوږدل)

**ځان وېلے کېدل** :- (اِص)-(۱) کمزورے کېدل-د بیمارۍ یا غم په وجه مانده کېدل. (۲) زيات محنت کول- ډېره خواري کول.

**ځان هېرول** :- (اِص)-(۱) خپل ځان ته نۀ کتل.
چې وبل ته نصيحت کاځان ئې هېر وي
بل څوك نۀ دې هغه تۀ عبدالرحمان ئې
(۲) لوئي کول- خپل تېر وخت ياد نۀ لرل.

**ځان يادول** :- (اِص)-ځان شمارول- ځان په څۀ کښې ګڼل.

**ځان يوغوړپ کول** :- (اَف)-اِص-ځان شۀ ډولے کول-په ښۀ شان سر ښې کول- ځان ښکلے کول.

**بې ځايه** :- (اِص)-(۱) بغېر د خپل ځان نه. (۲) بې هوشه-په ځان نا خبره.

**بې ځانه بې څوله** :- (اِص)-(۱) بېخي بې هوشه. (۲) مړ- بې روحه.

**په ځان** :- (اِص)-په خپل بدن-په خپل وجود-ځاني.
اے په ځان له خپله ځانه بې خبره
تــۀ معني له معني و غواړه بشره (مرزا خان انصاري)

**په ځان اخته کول** :- (اِص)-په خپل ځان کول-په تکليف کښې ګېرول.

**په ځان اخته کېدل** :- (اِص)-په تکليف کښې ګېرېدل.

**په ځان بلا کېدل** :- (اِص)-ځان ته د تکليف سبب جوړېدل.
د داني پــه طمع بند ازاد مارغۀ شي
در به ستا په ځان بلا شي دا ستا طمع (حميد)

**په ځان خندل** :- (اِص)-په خپل ځان پورې ټوقې کول.
چې دانا ته نصيحت وائي خوشحال
دا دې واړه ناداني ده په ځان خاندې

**په ځان غنې راکښل** :- (اِص)-ځان په تکليف کښې اچول-ځان عذابول.

**پــه ځــان قبلــول** :- (اِص)-پــه ځــان تېــرول. پــه ځــان اخســتل-څــۀ خبرې تــه غــاړه کښېښودل.
چې محنت په ځان قبول كا راحت مومـــي
خدا ے دې نۀ کاندې خواري د هېچا ورکه (خوشحال)

**په ځان کښې** :- (اِص)-په زړۀ کښې-د خپل ځان سره- په خپل بدن کښې.

**پــه ځــان ګــوتې وهــل** :- (اِص)- (۱) ځــان صــفا کــول-ځــان ســتره کــول. (۲) ځــان تيارول-مقابلې ته تياري کول.

**په ځان ورکول** :- (اِص)-وربخښل-څۀ ځيز چاته سپارل.

**پرځــان تېــرول** :- (اِص)-پرځــان وړل-پــه ځــان زغمــل-ســختي يــا مصيبت پــه ځــان پېښل.

**پرځان وړل** :- (اِص)-و ـــــــ پرځان تېرول.

**په چا ځان پورې ايستل** :- (اِص)-د چا په برکت خپل ځان بلې غـاړې تـه رسـول. د بل په وجه خپل کار تر سره کول.

**په خپل ځان** :- (اِص)-په خپل تن-په خپله په ځان.
پــه خــپل ځــان ښېګړه وکــړه غره مه شه
پــــه ښــــېګــړه د ادې او د بــــابــــا (رحمٰن)

**په خپلو متو ځان ساتل** :- (اِص)-و ـــــ په متـه ځان ساتل.

**په متـه ځـان ساتل** :- (اَف)-اِص-پـه زور ځـان سـاتل- پـه خپـل طاقت خپـل ځـان ژغورل-په خپلو متو خپل ځان ساتل.

**په يوائې ځان** :- (اِص)-په يو سر- يکي يوائې.

**ترځان تېرېدل** :- (اِص)-د خپل ځان پروا نۀ ساتل- قربانی ته غاړه کښېښودل.
زۀ ودۀ تـــه تر ځان تېر يم
دے ومــا تـــه پـــه عناد (حميد)

**تر ځان لوے باراخستل** :- (اِص)-تر ځان لوے بار وړل-د خپل طاقت او زغم نه لوے کار کول.

**تر ځان لوے باروړل** :- (اِص)-و ـــــ تر ځان لوے بارا خستل.

**دځان** :- (اِص)-ځاني-د خپل ځان.
تـــۀ د ځــان ئې زۀ د ځان يم
تـــــۀ جــدا ئـــې زۀ جــدا (خوشحال)

**د ځان په غوښو اخته کېدل** :- (اِص)-په خپل غم او مصيبت کښې ګېرېدل.
هسې زۀ د ځان په غوښو عشق اخته کړم
لــکــه نــۀ خـبــږي لــه ځان د پمن لاس (حميد)

**د ځان په نظر** :- (اِص)-د ځان په شان د ځان غوندې.
واړه د خــپل ځــان پــه نظر ګوره که دانا ئې
اے عبدالرحمانه جهان ټول عبدالرحمان دے

**د ځان ثاني نۀ لېدل** :- (اِص)-څوك د ځان برابر نۀ شمارل-ځان ډېر اوچت ګڼل.

**د ځان د پاره ځاګينل** :- (اَف)-اِص-(۱) خپل ځان ته کوهے کنستل. (۲) خپـل ځـان ته په خپله نقصان رسول.

**د ځان نه** :- (اِص)-(۱) له ځان-له خپله تنه-(۲) د خپله انده-د خپل طرف نه.

**د ځان نه اړول** :- (اِص)-د ځان نه بل طرف ته کول-ځان تر خلاصول.

**د ځان نه قلا چاپېرول** :- (اِص)-ځان بندول-د خلقو سره نۀ ملاوېدل.

**د ځان وير** :- (اِص)-د ځان غم- د ځان ژړا-د ځان فکر.
په خندا کښې مې ژړا ده لکه شمع
له عالمه پټ پنهان د ځان په وير يم (رحمان)

**د ځانه تراشل** :- (اِص)-د خپل ځان نه ياد خپله انده د دروغو خبرې جوړول.

**د خپل ځان** :- (اِص)-ځاني-د خپل وجود.

**له ځانه** :- (اِص)-و ـــــ د ځان نه.
چې ئې ووينم له ځانه خبر نۀ يم
چــې خبر نۀ يم له ځانه وايم څۀ (رحمٰن)

**ځانته** :- (ځان+ته)-[پ-ص]-يوائې-بېل-جُدا-ګوښې.

**ځانته کول** :- (اَص)(۱) ګوښې کول. بېلول-يوائې کول.(۲) خپلول-خپـل ځـان تـه کښېښول

**ځان کېدل** :- (اص)-ګوښې کېدل-بېلېدل-يواځې کېدل.

**ځان جاروونے** :- (ځان+جا+ر+وو+نے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: ځان جاروونې (مؤ: ځان جاروونې)]-قربانېدونکے-ځارېدُونکے-قرباني کوونکے.

**ځان ځاني** :- (ځان+دْ+زا+نيْ)-[اِپ-اس-مؤ]-(۱) خپل خپل ځان ته-په خپله مخه.(۲) خود غرضي-د خپل ځان فکر. (۳) بې وسيلې توب.

**ځان ځاني کېدل** :- (اص)-(۱) د خپل ځان غرض لټولے کېدل. (۲) بې وسيلې کېدل

**ځانځولی** :- (ځان+دْ+زو+لی)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-ډانګ ډولے-د ماشومانو په چې يو ماشوم د لاسو او پښو نه ونيسي او په هوا کښې ئې وړي او جُونې ورکوي.

**ځانځومړے** :- (ځان+د+زو+م+ړے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: ځانځومړي (مؤ: ځانځومړې)]-تپ-کمزورے-سست-ناراسته.

**ځانځومړے کېدل** :- (اَف)-اص-تپ کېدل-سستېدل-ناراسته کېدل.

**ځانخورګي** :- (ځان-خُوْ+رْ+ګيْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-زړۀ خوړل ځان کړول.

**ځانخورګي کول** :- (اَف)-اص-څۀ خبرې پسې زړۀ خوړل- بې ځايه ځان کړول.

**ځان خوښي** :- (ځان+خْ+و+ښيْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-خود پسندي-ځان خوښونه-ځان ته څۀ وينه-ځان په څۀ کښې حسابونه.

**ځان خوښے** :- (ځان+خْ+وَ+ښے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: ځان خوښي (مؤ: ځان خوښې)]-خود پسنده-ځان په څۀ کښې حسابوُونکے ځان ته څۀ ويونکے.

**ځاندار** :- (دْ+زا+نْ+دا+رْ)-[اِپ (ظفر)]-اس-مذ-(مؤ: ځانداره-ج: ځاندارې)]-جاندار-د ساه خاوند-روح لرونکے.

**ځاندره** :- (ځانْ+د+ره)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: ځاندرې]-شکل-صورت- مشاده-مشوره-ځانده-ځانګه-وجود-تنه-ځېه.

**ځانده** :- (دْ+زا+نْ+دَه)-[اِپ (خ)-اس-مؤ-وا-ج: ځاندے]او ــــــــ ځاندره.

**ځان ساتونے** :- (ځان+سا+ تُو+نے)-[اِپ-اس ص-مذ-وا-ج: ځان ساتوني (مؤ: ځان ساتونې)-محتاط- احتياط کوونکے-پام کوونکے.

**ځان ستاينه** :- (ځان+سْ+تا+يَ+نه)-[اِپ-اس-مؤ]-خپل تعريف په خپله کونه-د ځان صفت کونه.

**ځان ستايونے** :- (ځان+سْ+تا+يُو+نے)-[اِپ-اس ص-مذ-وا-ج: ځان ستايُوني (مؤ: ځان ستايُونې)]-د ځان تعريف کوونکے-د خپل ځان صفت کوونکے.

**ځان ښکارے** :- (ځان+ ښ+کا+رے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-ص-مذ]- هغه ثوک چې د خپل ځان نه سېوا بل ځان ورته نۀ ښکاري- خودنما.

**ځانکندن** :- (ځان+ک+ن+د+ن)-[اِپ-اس-مذ]-ځنکندن-د مړېدو وخت-د ژوندون اخري سلګۍ. ځنکدن

ځانکندن که ئې د غم پهټ وره کېږي

ارمـان نـۀ کاچې حضور وي د ليلا (احمد شاه ابدالي)

**ځانګړے** :- (ځان+ګ+ړے)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: ځانګړي-[مؤ: ځانګړې]-بېل ځان ته-ځان له-ګوښې-جدا.

**ځانګه** :- (د+زا+ن+ګه)-[اِپ-مهمند)-اس-مؤ-وا-ج: ځانګې]او ــــ ځاندره.

**ځانمنتوب** :- (ځان+م+نْ+تو+بْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-خودبيني-ځان ليدنه-لوے غرور-تکبر-ځانمني.

**ځانمنے** :- (ځان+م+نَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: ځانمني (مؤ: ځانمنې)]-مغرور- کبرجن.

**ځانمني** :- (ځان+م+نيْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-مغرورتيا-کبر- خودبيني.

**ځانمني کول** :- (اف)-اص-کبرکول-غرور کول-خودبيني کول.

**ځان وزګارے** :- (ځان+و+ز+ګا+رے)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: ځان وزګاري (مؤ- ځان وزګارې)]-فارغ-بېکاره-وزګار.

**ځاني** :- (د+زا+نيْ)-[اِپ-ص]-(۱) جاني- د ځان سره تعلق لرونکے. (۲) په خپل ځان-په خپله.

**ځاوو** :- (دْ+زا+وو)-[اِپ-اس-مذ]-ابشار-ځړونه-جړوبه.

**ځاؤ** :- (د+زا+ؤ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-حمله-زغل- زغابنت.

**ځاؤرول** :- (دزا+ؤ+رَ+ؤ+لْ)-[اِپ (ب-خ مص مت]-تکليف ورکول- کړول.

**ځاؤرَوُونکے** :- (دْزا+ؤ+رَ+وُو+نْ+کے)-[اِپ (ب، خ)-اس- فاع-مذ-وا-ج: ځاورَوونکي (مؤ: ځاؤرَوونکې)]- تکليف ور کوونکے- کړوونکے.

**ځاؤرونه** :- (دزا+ؤ+ر+و+نه)-[اِپ (ب،خ)حمص]-تکليف ورکونه-کړونه.

**ځاؤرېدل** :- (دزا+ؤ+رې+د+لْ)-[اِپ (ب،خ مص لا]-تکليف رسېدل-کړېدل.

**ځاؤرېدنه** :- (دزا+ؤ+رې+د+ نه)-[اِپ (ب،خ)-حمص) تکليف رسېدنه-کړېدنه.

**ځاؤرېدُونکے** :- (دزا+ؤ+رې+دُوْ+نْ+کے)-[اِپ (ب،خ)-مف-مذ-وا-ج: ځاؤرېدُونکي (مؤ: ځاؤرېدُونکې)]-تکليف رسېدونکے-کړېدُونکے.

**ځائې** :- (دزا+ئې)-[اِپ-کمله-(۱) مقامي-د يو ځاے اوسېدونکے. (۲) د شروع نه د اول سرنه- دځايه-له ځايه.

دا طالع زما څۀ اوس نـۀ دے ځائي دے

چـې پـه چا باند مئين شم دماغي شي (خوشحال)

**ځاے** :- (د+زا+ے)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: ځايونه]-(۱) مکان جائې-ټکانړه.

اوس مې ځاے په دا جهان کښې پاتې نۀ شۀ

خـوزبـدلے تـر چهل اوتـر پنجا يم (رحمٰن)

(۲) بستره-د خوب ځاے. (۳) مقام-درجه.

(۴) نـا اشناؤ سره ځاے د ګيلې نشته

هر چې وائم زۀ حميدله اشنا وائم

**ځاے اچول** :- (اص)-بستره غوړول-د څملاستې د پاره په کټ اسباب سمول.

**ځاے اخستل** :- (اص)-څۀ ځاے په بيعه تر لاسه کول. (۲) ځاے نيول. د څۀ ځاے د نيولو جوګه کېدل.

**ځاپېر ځاے** :- (ځاے+پ+ر+ځاے)-[اِپ-اس-مذ]-ځاے په ځاے-يو بل ځاے.

**ځاے دربدل** :- (اص)-په يو بل ځاے اودربدل-په هر طرف څوکۍ کول.

**ځاے پر ځاے کېدل** :- (اص)-(۱) ګډوډ کېدل-د يو بل نه جدا جدا کېدل.

(۲) په خپلو ځايونو مقررېدل. (۳) په بېلو بېلو ځايونو اودربدل.

**ځاے پر ځاے پرېښودل** :- (اص)-(۱) د چا د پاره د عزت پـه ډول خپل نيولے ځاے خالي کول-چا ته دَ ځايه پاڅېدل. (۲) د يو ځايه تلل. معزول کېدل.

(۳) په کېږه تلل. (۴) د څۀ پيوند خلۀ ويستل.

**ځاے په ځاے** :- (اص)- جائې پـه جائې يو بـل ځاے-التـه دلتـه-دلے دُورے-ځاے پر ځاے.

ځاے په ځاے به وي ټولې د زلمو جونو

ښائسته به پر جهان وي مونږ به نۀ يو

**ځاے ته راتلل** :- (اص)-(۱) يو مقام تـه يا کور تـه راتلل-(۲) اصليت تـه راتلل

سمېدل. (۳) جوړ په ځای کېدل.

**ځي ته رسول** :- (اص)-(۱) څوك تر يو مقام پورې بوتلل-د چا تر ځايه جله کول. (۲) چاته ترقي ورکول. (۳) څوك د علم اوچت مقام ته خېژول. (۴) څوك څهٔ كار يا مقصد كښې كاميابول. تر ځايه رسول. (۵) يوه خبره تر اخري حده رسول.

**ځای ته رسېدل** :- (اص)-(۱) خپل مقام ته رسېدلي کېدل-ترځايه جلب کېدل. (۲) ترقي ورکېدل. (۳) د علم اوچت مقام ته رسېدل. (۴) په څهٔ کار يا مقصد کښې کاميابېدل. (۵) يوه خبره تر اخري حده رسېدل تر ځايه رسېدل.

**ځايجوړول** :- (اص)-(۱) مکان تيارولي-مېله جوړول. (۲) د چا د پاتې کېدو د پاره ځای ځائېگې برابرول. (۳) د چا د پاره ځای خالي کول.

**ځای جوړېدل** :- (اص)-(۱) مکان تيارېدل-مېله جوړېدل. (۲) ځای برابرېدل. (۳) د چار پاره ځای خالي کېدل.

**ځای خالي کول** :- (اص)-(۱) ځائې پرېښول-تعظيم کول. (۲) عهده خالي کول. (۳) څوك د يو ځايه ويستل-کول خالي کول. (۴) ځای لوګول-ځای شاړول.

**ځای د ځايه** :- (اص)-د لور لور نه-د يو بل طرف نه-د مختلفو سيمونه.

**ځای کول** :- (اص)(۱) ځايول-ځای خالي کول(۲) ځای جوړول-ځائېدل-مقام موندل.

يار مې هسې رنګه ځای ورکړو په سترګو
چې وهر لوري ته ګورم واړه دے دے (خوشحال)

**ځای کېدل** :-(اص)-(۱) ځای خالي کېدل-ځای جوړېدل. (۲) ځائېدل-(۳) نصيب کېدل-په برخه رسېدل.

وايه ځای شه د رقيب زير زمين
خدای دې هسې که په دا دعا آمين (حميد)

**ځای لرل** :-(اص)-(۱) مکان درلودل-د ځای خاوند کېدل.(۲) مناسبت لرل-حق لرل

ځای لري که بې منته بوسه راکړې
کوم کريم په چامنت د خپل کرم ږدي (رحمن)

**ځای موندل** :- (اص)-ځای حاصلول ځای په لاس راتلل-درجې يا عهدې ته رسېدل.

**ځای نيول** :- (اص)-(۱) مکان نيول-ځای قبضه کول. (۲) د څهٔ عهدے قابل جوړېدل. (۳) د چا په مرګ يا تګ د هغهٔ ځای په بنهٔ شان چلول.

**ځای ورکول** :- (اص)-(۱) کور ورکول-مکان ورکول. (۲) عهده وربخښل-(۳) نوکري ورکول.

**ځای وهل** :- (اص)-(۱) رتبه يا عهده تر لاسه کول. (۲) په چل ول يو ځای ټينګول.

**بې ځايه** :- (اص)-(۱) بې موقعې. (۲) ګډوډ-لور به نور.

هره ساه خپله وروستی. ګڼلې بويه
مرګې ډېرې خلقې سره بې ځای کړې (خواجه محمد بنګش)

(۳) د ځايه خوزېدلے-اوښتے-بې جوړه شوے.

**په ځای** :- (اص)-(۱) په مقام-موجود. (۲) په حقه-په رښتيا.

**په ځای ځای** :- (اص)-په موقعه موقعه-ځای په ځای.

**په ځای کول** :- (اص)-(۱) ابادول-ميشته کول. (۲) وادهٔ کول. (۳) په مقرر ځای کښېنول. (۴) يو ځای ته ټولول. (۵) حق ادا کول. سرته رسول.

که نظر په نعمتونو د بنهٔ خدای کړې
تهٔ به کله د يوهٔ شکريه ځای کړې (خواجه محمد بنګش)

**په ځائې کښېناستل** :- (اص)-د مشرانو ځای نيول-د چا د ځای اخستلو جوګه کېدل.

**په ځای کېدل** :- (اص)-(۱) په خپل مقام موجود ېدل. (۲) خپل ځای موندل (۳) حق ادا کېدل.

**په ځای ننوتل** :- (اص)-(۱) مکان ته دننه کېدل-د چاکورته ننوتل. (۲) په بستره کښې آرام کول.

**په ځای ورننوتل** :- (اص)-(۱) د شرعې خلاف د ښځې سره يو ځای کېدل (۲) چاته سمه سزا ورکړې کېدل.

**ترځايه رسول** :- (اص)-و ـــــ ځای ته رسول.

**ترځايه رسېدل** :- (اص)-و ـــــ ځای ته رسېدل.

**حق ور په ځای کول** :- (اص)-(۱) چاته خپل حق رسول. (۲) د چا خدمت کول (۳) سزاور کول.

**خپل ځای پېژندل** :- (اص)-خپله درجه او حيثيت پېژندل-د خپل ځان متعلق په غلط فهمۍ کښې نهٔ پاتې کېدل.

**د ځايه** :- (اص)-له ځايه-ځائې-د اول سرنه.

زهٔ له ځايه دماغي په جهان راغلم
ما داهسې دماغ اوس نهٔ دے راوړے (خوشحال)

**د ځای ځای** :- (اص)-د بېل بېل ځای- د مختلفو ځايونو- د يو بل خوا.

**له ځايه** :- (اص)-و ـــــــ د ځايه.

**ځای غلی** :- (ځای+غ+لی)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ]-هغه حامله ښځه چې د بچي نژدې کېدو په درد کښې ګېره وه.

**ځايکي** :- (د+زا+ي+کـي)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-ګل زرې د نخښې سترګه-د نخښې مېنځ.

**ځايکي ويشتل** :- (اَف)-اص-ګل زرې ويشتل-د نخښې مېنځ ويشتل-صحيح نخښه ويشتل.

**ځائېګهي** :- (دزا+ ئي+ګ+هي)-[اِپ-ص]-ځائېګي-پوخ په نخښه په ټير.

ځائېګهي دود يشتلم
کوم خطائې په ويشتد (خوشحال)

**ځائې ګير** :- (دزا+ئي+ګي+ر)-[اِپ-ص]-په زړهٔ کښې-د زړهٔ دننه دېره-استوګن.

بده طمعه څنې واخله
توکل په زړهٔ ځای ګيرکړه (مرزا انصاري)

**ځائېګے** :- (دزا+ئې+ګے)-[اِپ-اس تصغير-مذ-وا-ج: ځائېګي]-(۱) د ځای اسم تصغير-مذ-وا-ج: ځائېګي]-(۱) د ځای اسم تصغير-جائېنګے. (۲) نخښه.

**ځائېګي ويشتل** :- (اص)-نخښه ويشتل.

**ځائې ناستے** :- (ځای+نا+س+تے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: ځای ناستي-(مؤ: ځای ناستې)]-زوے- بچے -د پلار په ځای ناست.

**ځايول** :- (د+زا+ي+و+ل)-[اِپ-مص مت]-(۱) ځای کول-ګنجائش پېدا کول. (۲) زغمل-ېېځل-برداشت کول.

د ډېر ظلم حال د نهٔ وائمه چاته
ټول په زړهٔ کښې ځايوم ولې تر کومه (علي خان)

**ځایونګ** :- (دْ+زا+ي+و+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و ـــــــ ځایونه.

**ځایونه** :- (د+زا+ي+و+نه)-[اِپ-حمص]-(۱) ځایونګ-ځاے کونه ګنجائش پیدا کونه. (۲) زغمنه-پېځنه-برداشت کونه.

**ځـایوُونکے** :- (دْ+زا+ي+وُوْ+نْ+کے)-[اِپ-اس فـاع-مـذ-وا-ج: ځـایوونکي-مؤ: ځـایوُونکې]-(۱) ځـاے کـوُونکے. ګنجـائش پیـدا کـوونکے. (۲) زغموُونکے-پیځونکے-برداشت کوونکے-ځایوونے.

**ځـایوونے** :- (دْ+زا+ي+ووُ+نے)-فـاع-مـذ-وا-ج: ځـایووني (مـؤ: ځـایوونې)]-و ـــــــ ځایوونکے.

**ځائېدل** :- (دْ+زا+ئي+د+لْ)-[اِپ-مص لا]-(۱) ځاے کېدل-راتلل-ګنجائش پیدا کېدل. (۲) زغملے کېدل-برداشت کېدل.

**ځائېدنګ** :- (دْ+زا+ئي+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس) حمص] و ـــــ ځائېدنه.

**ځائېدنه** :- (دْ+زا+ئي+د+نه)-[اِپ-حمص]-(۱) ځائېدنګ-ځاے کېدنه-راتلنه-ګنجائش پیدا کېدنه-(۲) زغمنه-برداشت کونه-پېځلے کېدنه.

**ځائېـدُونکے** :- (د+زا+ئـي+دُوْ+نْ+کے)-[اِپ-مـف-مـذ-وا-ج: ځائېـدُونکي (مـؤ: ځائېدُونکې)]-(۱) ځاے کېدُونکے-راتلُونکے-ګنجائش پیدا کېدُونکے (۲) زغملے کېدُونکے-برداشت کېدُونکے.

**ځـب** :- (دْ+زَ+بْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-مؤ-وا: ځبـه-ج: ځبې]-(۱) ګڼ وېښتۀ-ګور وېښتۀ. (۲) په ځۀ نرم ځیز د سخت ځیز د را پرېوتو اواز.

**ځب کېدل** :- (اَف)-اص-(۱) وېښتۀ ګڼ ګور کېدل. (۲) د سخت ځیز په نرم شي را پرېوتل او اواز ویستل.

**ځبځب** :- (ځب+دْ+زَ+بْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مـذ]-مېده مېده-پوست پوست.

**ځبځب کول** :- (اَف)-اص-مېده مېده کول-پستول-بنۀ اوړۀ کول.

**ځبځب کېدل** :- (اَف)-اص-مېده مېده کېدل-پستېدل-بنۀ اوړۀ کېدل.

**ځبربېرے** :- (ځب+ژيِ+رَے یا ګي+رَې)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-ص-مـذ]-ګڼه ږېره لرونکے. جب ږیرے-د ګڼې ږیرې خاوند.

**ځبل** :- (دْ+زَ+ب+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-کوټل-مېده کول-دانې ټکول.

**ځبله** :-(دْ+ز+بْ+له)-[اِپ-کلمه-مؤ]-یو تر بله-په خپلو کښې-په خپـل مېنځ کښې.

پـه یـوه ژبه پښتو سره وئیل کړو
ولــې یــو ځـبله نۀ شو خبردار (خوشحال)

**ځبلے** :- (دْ+زَ+ب+لَے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: ځبلي (مؤ: ځبلې)]-(۱) ټکېدلے-کوټلے-مېده کړے. (۲) خوار-ذلیل-بدحاله. (۳) ګڼ ګور.

**ځـبن** :- (دْ+زَ+ب+نْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-(مـؤ-وا: ځبنه-ج: ځبنې)]-(۱) خیرن-خیچن-مېله. (۲) ناپوهه-کم عقل-بې شعوره.

**ځبنګ** :- (دْ+زَ+ب+نَ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس-حمص]و ـــــــ ځبنه.

**ځبنـه** :- (دْ+زَ+ب+نـه)-[اَف:پ (قـاموس)-حمـص]-(۱) ځبنـګ-مېـده کونـه-ټکونه-کوټنه. (۲) ګڼه ګوره ږیره.

**ځبوالے** :- (دْ+رَ+بْ+وا+لے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-ګڼوالے-ګوروالے-زیاتوب.

**ځبونکے** :- (دْ+زَ+بُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس فـاع-مـذ-وا-ج: ځبونکي-(مؤ: ځبونکې)-مېده کوُونکے-کوټونکے-پستؤونکے.

**ځبېـدل** :- (دْ+زَ+بـي+د+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-مـص لا]-ګڼېـدل-ګُوربـدل-زیاتېدل.

**ځبېدنـه** :- (دْ+زَ+بي+د+نـه)-[اَف:پ (قـاموس) حمـص]-ګڼېدنـه-ګوربدنـه-زیاتېدنه.

**ځبېــدُونکے** :- (دْ+زَ+بــي+دُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قــاموس) مــف-مــذ-وا-ج: ځبېدُونکي (مؤ: ځبېدُونکې)]-ګڼېدونکے-ګوربدونکے-زیاتېدونکے.

**ځبښـل** :- (دز+بـي+ش+لْ یـا خ+ل)-[اِپ-مـص مـت]-(۱) پـه لاسـو مښـل. (۲) چوپل-رس ترویستل.

**ځبښـلے** :- (دز+بي+ش+ لے یا خ +لے)-[اِپ-مـف-مـذ-وا-ج: ځبښـلي-(مـؤ: ځبښلې)]-(۱) په لاسومښلے. (۲) چوپلے- رس ترویستلے.

عاشقان ئې صــد هزار دي په هرلوري
سرګشته حېران پرېشان ګونه ځبښلے (خوشحال)

**ځبښند** :- (دز+بي+ش+نْ+د+یا خ+ن+د)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]-جذب کوونکے-جاذب-راکښوُنکے-ځبښوُنکے.

**ځبښنګ** :- (دز+بي+ښ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و_ ځبښنه.

**ځبښنه** :- (دز+بي+ش+نه یا خ+نه)-[اِپ-حمص]-(۱) ځبښنـګ-چوپنـه-مروړنه. (۲) جذب کونه.

**ځبښــونکے** :- (دز+بي+شـو+ن+کے یـا خـو+ن+ کـے)-[اِپ-فـاع-مـذ-وا-ج: جښونکي (مؤ: ځبښونکې)]-(۱) مروړونکے. (۲) چوپونکے. (۳) جذب کوونکے.

**ځبښونے** :- (دز+بي+شُوْ+نے یا خو+نے)-[اِپ-فاع-مذ-وا-ج: ځبښـوونکي-(مـؤ: ځبښوونې)]-جاذب-ځبښند.

**ځځبوکے** :- (د+زْ+دز+بو+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]و ـــــــ جزغاله.

**ځځغولے** :- (د+زَ+در+غو+لے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]و ـــــــ جزغاله.

**ځځېـرل** :- (دْ+ز+د+زي+د+لْ)-[اِپ (شـن)-مـص لا-څنـړول-ړقـول-جړقـول-شورول-بیداروُل-ویښول.

**ځـر** :- (د+ز+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]-(۱) د دسـتونو پـه وخـت د خېټې اواز چې لاندې خېژي. (۲) د نرم پوست وچ شوي بُوټي د اور د شغلې اواز.

**ځرځ** :- (د+ز+رْ+دزْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-ززخ-سورنجن-خرېخن.

**ځرهار** :- (دْ+ز+ر+ها+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-(۱) د دستونو په وخت د خېټې په یو مخ اواز. (۲) د نرم وچ بُوټي د اور د شغلې اواز.

**ځرهار کول** :- (اَف)-اص-(۱) د دستولو پـه وخت د خېټې اواز. (۲) د نـرم اوچ بُوټي د اور د لمبې اواز.

**ځرهار کېدل** :- (اَف)-اص-(۱) د دستونو پـه وخت د خېټې اواز ختـل. (۲) دوچ بُوټي د اور د لمبې اواز ختل.

**ځـړے** :- (د+زَ+ړے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: ځـړي (مـؤ: ځـړې)]-جاسوس-څاروُنکے.

**ځړېدل** :- (دْ+ز+ړي+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص لا]-د خېټې نه د باد اواز راوتل.

**ځړېدلے** :- (دْ+ز+ړي+دَ+لے)-[اَف:پ (قـاموس)-مف-مـذ-وا-ج: ځړېدلي (مؤ: ځړېدلې)]-د دستولو په وخت د خېټې نه باد اوتلے.

**ځړېدنګ** :- (دْ+ز+ړي+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و ـــــ ځړېدنه.

**ځړېدنه** :- (د+ز+ړي+د+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-ځړېدنګ-د خېټې نه د دستونو په وخت بادراوتنه-ځړېدۀ.

**ځړېــدُونکے** :- (د+ز+ړي+دُوْ+ن+کـے)-[اَف:پ (قـاموس)-فـاع-مــذ-وا-ج:

ځړېدُونکي (مؤ: ځړېدُونکې)-پړپړ کوونکې-د ځېتې نه د باد اواز راتلُونکې.

**ځړېدهٔ** :- (د+ز+ړې+دهٔ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و_____ ځړېدنه.

**ځړانګه** :- (دُ+ز+ړا+نْ+ګه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: ځړانګې]- دُوندا و سیلۍ چې د لرې نه په نظر راځي.

**ځړوبه** :- (دز+ړو+به)-[اپ-اس-مؤ-وا]- ابشار_زاوهٔ.

**ځړوبے** :- (د+ز+ړو+بے)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: ځړوبي]-آبشار-زاوهٔ-ځړوبه.

**ځړول** :- (د+ز+ړ+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-ځوړند کول-اوېزاندول-لکول-بندول.

**اوبهٔ په ځړول** :- (اَف)-اص)-(۱) اوبهٔ پراچول-(۲) شرمول-شرمنده کول.

**ځړولے** :- (د+ر+ړ+وَ+لے)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: ځړولي (مؤ: ځړولې)]-ځوړند کړے-اوېزاند کړے-لك کړے.

**ځړونګ** :- (دُ+ز+ړ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و_____ ځړونه.

**ځړونه** :- (دُ+ز+ړ+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-ځړونګ-اوېزاندونه-ځوړند کونه-لکونه.

**ځړوُونکے** :- (د+ز+ړ+وو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-فاع-مذ-وا-ج: ځړوُونکي (مؤ: ځړوُونکې)]-اوېزاندوُونکے-لکوونکے-ځوړند کوُونکے.

**ځز** :- (دُ+ز+زْ)-[اپ-اس صو-مذ]-جز-په یو ګرم څیز د اوبو یا بل نرم څیز د توئېدلو اواز-چس-ځغ.

**ځزکے** :- (دُ+ز+کے)-[اپ-اس-صو-مذ]-جزېدنه-په ګرم څیز د اوبو د توئېدلو پرله پسې اواز.

**ځزکي کول** :- (اص)-جزېدل-پرله پسې اوبهٔ په ګرم څیز توئېدل.

**ځر** :- (دُ+زْ+ژ یا دُ+ز+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-(۱) د بند یا دریاب کچه غاړه چې اوبهٔ ترې بهر بهېږي. (۲) د ټوپك ډز. (۳) هغه شګه چې سیلاب ئې راوړي او یو خوا ته ئې واچوي.

**ځره** :- (دُ+زَ+ژه یا ګه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: ځرې]-ورك وتے غرګے.

**ځښت** :- (دُ+ز+ش+تْ یا د +ز+ځ+تْ)-[اپ-اس-مذ](۱) ژشت-زښت-ناښ. هغه څوك چې د بل بدي شي. (۲) زیات-ډېر.

**ځښت کېدل** :- (اص)-(۱) زیاتېدل-(۲) بدي کېدل-په ځان بدلګېدل. ژشتېدل-زښتېدل.

**ځښت ښهٔ** :- (ځښت + شهٔ یا خه)-[اپ-ص]-ډېر ښهٔ-زیات ښهٔ-غوره.

**ځښکله** :- (د+ز+ش یا دُ+ز+خْ+ك+له)-[اپ-اس-مؤ]-څهٔ وخت-هغه وخت-هرکله.

**ځغ** :- (دُ+ز+غ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-و _______ ځز.

**ځغاسته** :- (دز+غا+سْ+ته)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- زغل ترپ-منډه-درړه- ځغسنا-ځغلا.

**په یوه ځغاسته تلل** :- (اَف)-اص-په شنه منډه تلل-ډېر تېز تلل-په درړه تلل-ترپېدل-زغلېدل.

**ځغاله** :- ( دُ+ز+غا+لَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: ځغالې]پېره-د خمیره دُوړې یا اوړو د هغه غونډه پېړه چې یوې ډوډۍ ته تیاره کړې شي.

**ځغځه** :- (دُ+ز+غ+دْ+زه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-ج: ځکځې]-یو قسم شین وابښهٔ چې څناور ئې خوري.

**ځغستا** :- (دزْ+غا+سْ+تا)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: ځغستاوې]-

و_____ ځغاسته.

**ځغستل** :- (دز+غ+س+تَ+ل)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]- ترپ کول-په منډه تلل- دؤ کول.

**ځغستلے** :- (دز+غ+سْ+تَ+لے)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: ځغستلي (مؤ:ځغستلې)]په درړه شوے-په منډه شوے-ترپېدلے.

**ځغسته** :- (دز+غ+س+ت+ته)-[اَف:پ (قاموس)حمص]-په دؤ کېدنه-ترپېدنه-په منډه تلنه.

**ځغستُونکے** :- (دز+غ+سْ+تُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اس فاع-مذ-وا-ج: ځغستونکي (مؤ: ځغستُونکې)]-ترپېدُونکے-زغلېدُونکے-په منډه تلُونکے.

**ځغلا** :- (دزْ+غ+لا-[اپ-اس-مؤ]- و______ ځغاسته.

**ځغلند** :- (دز+غ+ل+نْ+د)-[اپ-اس-مذ-(مؤ: ځغلنده)]-په منډه-په درړه ترېند- زغلند.

**ځغلندے** :- (دز+غ+لَ+نْ+دَ+ے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-(مؤ: ځغلندۍ)-(۱) ذلیل-بربوتے. (۲) عاجز-خوار. (۳) ډارز-یرندوکے-وېرېدُونکے.

**ځغلول** :- (دز+غ+ل+و+لْ)-[اپ-مص مت]-(۱) په منډه اخستل-په ترپه کول-زغلول-ورړول-ورړول. (۲) په مخه اخستل-لړول-شکست ورکول.

**فکر ځغلول** :- (اص)-فکر کول-سوچ کول.

**ځغلولے** :- (دز+غ+ل+وَ+لے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ځغلولي-(مؤ: ځغلولې)]-(۱) په منډه کړے-زغلولے په درړه کړے. (۲) لړ کړے-پا شا کړے.

**ځغلونګ** :- (دز+غ+ل+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و_____ ځغلونه.

**ځغلونه** :- (دز+غ+ل+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و_______ ځغلونه.

**ځغلوُونکے** :- (دز+غ+ل+وُو+نْ+کے)-[اپ-فاع-مذ-وا-ج: ځغلوُونکي-(مؤ: ځغلوُونکې)]-(۱)په منډه اخستونکے-زغلوُونکے. (۲) لړووُنکے-په شاکوُونکے-شکست ورکوُونکے.

**ځغلېدل** :- (دز+غ+لې+د+لْ)-[اپ-مص لا]-(۱) زغلېدل-ترپېدل-په منډه کېدل. (۲) لړېدل-مېدان پرېښول-شکست خوړل-په شاکېدل-ښکېل کېدل.

**ځغلېدلے** :- (دز+غ+لې+د+لے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ځغلېدلي-(مؤ: ځغلېدلې)]-(۱) زغلېدلے-په منډه شوے. (۲) لړ شوے-شکست خوړلے- ښکېل شوے.

**ځغلېدنګ** :- (دز+غ+لې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و____ ځغلېدنه.

**ځغلېدنه** :- (دز+غ+لې+د+نه)-[اپ-حمص]-(۱) ځغلېدنه-زغلېدنه-په منډه کېدنه. (۲) لړېدنه-شکست خوړنه-په شا کېدنه.

**ځغلېدُونکے** :- (دز+غ+لې+دُو+نْ+کے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ځغلېدُونکي (مؤ: ځغلېدُونکې)]-(۱) زغلېدُونکے-په منډه تلُونکے. (۲) لړېدونکے-شکست خوړُونکے-په شاکېدُونکے.

**ځغلېدهٔ** :- (دز+غ+لې+دهٔ)-[اپ-حمص]- و_______ ځغلېدنه.

**ځغم** :- (دز+غ+مْ)-[اپ-اس-مذ]-(۱) حوصله-زغم-سهنه-تېر. (۲) جذب.

**ځغمل** :- (دز+غ+م+لْ)-[اپ-مص مت]-(۱) زغمل-په ځان تېرول-برداشت کول-سهل. (۲) جذب کول-نغرل.

**ځغملے** :- (دز+غ+مَ+لے)-[اپ-مف-م-وا-ج: ځغملي-(مؤ: ځغملې)]-(۱) زغملے-په ځان تېر کړے-سهلے. (۲) جذب کړے.

**ځغمنګ** :- (دز+غ+م+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و______ ځغمنه.

**ځغمنه** :- (دز+غ+م+نه)-[اپ-حمص]-(۱) ځغمنګ-زغمنه-په ځان تېرونه-

سهنه. (۲) جذب کونه.

**ځغمونکے** :- (دز+غ+مُو+نْ+کے)-[پ-فاع-مذ-وا-ج: ځغمونکي-(مؤ: ځغمونکې)]-[پ-فا-مذ-وا-ج: ځغمونکي-(مؤ:ځغمونکې)]- (۱) زغمونکے-په ځان تېرۇونکے-سهونکے. (۲) جذب کوونکے.

**ځغول** :- (د+ز+غ+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-جذول-په غوږو يا تېلو کښې سُور کول.

**ځغونځ** :- (دز+غو+نْ+دز)-[پ (ظفر)-اِس-صوت]-زغونځ-د مچيو يا چينجو حرکت. ځغونځے.

**ځغونځ ځغونځ کول** :- (اِص)-د مچيو يا چينجو حرکت کول.

**ځغونځاوے** :- (د+ز+غو+نْ+د+را+وے)-[پ (ظفر) اِس-ج]-غونزاوے- بې قاعدې ګنه ګونه.

**ځغونځول** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زَ+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-چينجي يا نور دغه شان څيزونه په حرکت راوستل-غزول- پارول.

**ځغونځولے** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زَ+و+لے)-[اَف:پ (قاموس)-مف]-چينجے وغېره په حرکت کړے-غزولے-پارولے.

**ځغونځونګ** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زَ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس) حمص]-ځغونځونه.

**ځغونځونه** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زَ+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-ځغونځونګ-پارونه-غزونه- چينجي وغېره حرکت کښې راوستنه.

**ځغونځوونکے** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زَ+وو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اَس فاع-مذ-وا-ج: ځغونځوونکي (مؤ: ځغونځوونکې)]- پاروونکے-غزوونکے-چينجي وغېره په حرکت کښې راوستُونکے.

**ځغونځے** :- (د+ز+غو+نْ+دْ+زے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-صوت]و___ ځغونځ.

**ځغونځېدل** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص لا]-(۱) پارېدل-غزېدل-د مچو په حرکت کښې راتلل. (۲) څنګ په څنګ کېدل.

**ځغونځېدلے** :- (د+ز+غو+نْ+د+زې+د+لے)-[اَف:پ (قاموس) مف-مذ-وا-ج: ځغونځېدلي (مؤ:ځغونځېدلې)]-پارېدلے-غزېدلے-په حرکت کښې راغلے.

**ځغونځېدنګ** :- (د+ز+غو+نْ+د+زې+د+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)حمص]- و___ ځغونځېدنه.

**ځغونځېدنه** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زې+د+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- ځغونځېدنګ-پارېدنه-غزېدنه-د مچو په حرکت کښې راتلنه- ځغونځېدۀ.

**ځغونځېدونکے** :- (دْ+ز+غو+نْ+دْ+زې+دُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-فا-مذ- وا-ج: ځغونځېدُونکي (مؤ: ځغونځېدونکې)] پارېدونکے-غزېدُونکے- مچې په حرکت کښې راتلونکے.

**ځغونځېده** :- (دْ+ز+غو+ن+د+زې+دۀ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و___ ځغونځېدنه.

**ځغېدل** :- (دْ+ز+غې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص-لا]-جزېدل په غوږو يا تېلو کښې څۀ سُور کېدل.

**ځک** :- (د+زَ+كْ)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: ځکونه]-ځك-زك-تکليف-خفګان-اواز.

**ځکلول** :- (د+زَ+كْ+لْ+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص مت]- خفا کول- ناراضه کول-زك رسول- جکول-اوازول.

**ځکلولے** :- (د+ز+كْ+ل+و+لے)-[اَف:پ (قاماموس)-مف-مذ-وا-ج: ځکلولي-(مؤ: ځکلولې)]-خفه کړے-ناراضه کړے-اواز کړے-جکولے.

**ځکلونګ** :- (دْ+ز+كْ+ل+و+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و___ ځکلونه.

**ځکلونه** :- (دْ+ز+كْ+ل+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-ځکلونګ-خفه کونه-اوازونه-ناراضه کونه-جکونه.

**ځکلوُونکے** :- (دْ+ز+كْ+ل+وُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-فاع-مذ-وا-ج: ځکلوُونکي (مؤ: ځکلووُنکې)]-ناراضه کوونکے-جکوونکے.

**ځکلېدل** :- (دْ+ز+كْ+لې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص لا]-خفه کېدل-ناراضه کېدل-اوازېدل-جکېدل.

**ځکلېدنګ** :- (دْ+ز+كْ+لې+د+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و___ ځکلېدنه.

**ځکلېدنه** :- (دْ+ز+كْ+لې+د+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-ځکلېدنګ-اوازېدنه-ځکلېدۀ-تکليف رسېدنه-جکېدنه.

**ځکلېدُونکے** :- (دْ+ز+كْ+لې+دُو+ن+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: ځکلېدُونکي-(مؤ: ځکلېدُونکې)]-جکېدُونکے-اوازېدُونکے.

**ځکلېدۀ** :- (دْ+ز+كْ+لې+دۀ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و___ ځکلېدنه.

**ځکدن** :- (د+ز+ك+دَ+نْ)-[پ-اِس-مذ]-ځنکدن-زنکدن-د ساه وتلو حالت-د مرېدو وخت.

**ځکه** :- (دْ+ز+که)-[پ-کلمه]-په دې وجه-په دې سبب-له دې کبله.

چې وفا ئي له چا نۀ مونده په مزکه
و اسمان وته روان شو عيسی ؑ ځکه (خوشحال)

**ځګ** :- (دْ+زَ+ګْ)-[پ-ه: جهاګ-اس-مذ-وا-ج: ځګونه]-دګ-د اوبو د پاسه سپين شان څيز چې د اوبو د پاسه يا د ژوندي سړي د خولې نه اوځي-د صابون په مبنلو هم نزدې کېږي.

لکه ځګ چې د اُوبو په سرليدۀ شي
که ئې واخلې هېڅ درنۀ شي په چنګال (رحمٰن)

**ځګ پرېښول** :- (اِص)-ځګ کول-ځګ-خوټول.

**ځګ خوټول** :- (اِص)-ځګ کول-ځګ راختل-ځګ پرېښول.

**ځګ غورزول** :- (اِص)-ځګ توېول-د خولې نه ځګونه توېول.

**ځګ کول** :- (اِص)-و___ ځګ پرېښول.

**ځګال** :- (د+ز+ګا+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-په ښوروا کښې ماته کړې شوې ډوډۍ-واړه مړې-پېنډه تربل.

**ځګر** :-(دْ+زِ+ګَ+رْ)-[پ-فا: جګر-اس-مذ-وا-ج: ځګرونه-ځګرے](۱) اسينه-ينه.

خپل ځګر که ناصح وريت کا پرې ئې وخوري
سُود نۀ رسي د جهل و شمکورته (علي خان)

(۲) تېتر-سينه. (۳) خوږ-زړۀ ته نزدې.

**ځګر ويني کول** :- (اِص)-غم کول-تکليف تېرول-د چا په غم کښې زيات کړېدل.

هاله ياد کړم په بوسه خونخوارو شونډو
چې د پانو په څېر ويني کۀ ځګرما (حميد)

**ځګر وينې کېدل** :- (اِص)-ډېر کړېدل-زيات تکليف رسېدل-سترے ستومانه کېدل-د چا په غم کښې تولېدل.

**ځګرخون** :- (ځګر+خُو+نْ)-[پ-فا: جګرخون-اِس-مذ]-د ځګر ويني-غم-فکر-کړاؤ-تکليف.

په ميدان کښې توئې ښې دي د سر ويني
نۀ چې ډکه سينه وړې له ځګرخونه (خوشحال)

**ځګرخون کول** :- (اص)-زړهٔ خوړل-غم کول-نولېدل.

**ځګرور** :- (د+ز+ګْ+رَ+و+رْ)-[اپ-اس ص-مذ (مؤ-وا: ځګروره-ج: ځګرورې)]-بهادر-تورزن-نر-تکړه.

بل بـــــه نـــهٔ وي لکه تهٔ ئې
هسې شـــوخ او ځـــګرور (رحمٰن)

**ځګلانه** :- (دْ+ز+ګْ+لا+نه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا]-غرکه-هغه ګوډې چې تروې يا لسي په کښې شاربلے شي.

**ځګلن** :- (دْ+ز+ګْ+ل+نْ)-[اپ-اس-ص-مذ (مؤ-وا-ځګلنه-ج: ځګلنې)] زګ لډونکے، زګ دار.

**ځګېدل** :- (د+ز+ګې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص لا]-زګېدل-زګ ختکول-زګ پرېښول.

**ځګېروي** :- (د+ز+ګې+رْ+وي)-[اپ-اس-مذ]-زګېروي-فرياد-زبېرګي.

**ځل** :- (دْ+زَ+لْ)-[اپ-اس-مذ] (۱) زل-وار-نوبت. (۲) زلق-چنك-پنك-ځلا (۳) سخته تنده.

**ځل وهلے** :- (اص)-ډېر تږے شوے-د تندې منجد حاله.

په اوبو باندې بنهٔ موړ شو
ځل وهلے زړهٔ ئې سوړ شو (اسماعيل قمر)

**ځل** :- (دْ+ز+لْ)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: ځلان]-د ځاروې د شاکپړه- زل-جول.

مور دې ځل پلار دې ګونې
له چا پېدا شوې شين خالې (کاکړې لنډۍ)

**ځل پراېښودل** :- (اَف)-اص-په چا ځل اچول-څوك مطيع كول.

**ځلا** :- (دْ+ز+لا)-[اپ-اس-مؤ]-زلق-چنك-پنك.

**ځلان** :- (دْ+ز+لا+نْ)-[اپ-ص-مذ-(مؤ-وا: ځلانه-ج: ځلانې)]-ځلاند-روښانه-پرقېدونکے-چنکېدونکے.

**ځلاند** :- (دْ+ز+لا+نْ+دْ)-[اپ-ص-مذ]-مؤ-وا: ځلانده-ج: ځلاندې]او___ ځلان.

**ځلان كول** :- (اص)-ځلول-روښانه كول-چنل كول-پرتول.

**ځلاند كېدل** :- (ځلېدل-روښانه كېدل-چنكېدل-پرقېدل.

**ځلبل** :- (دْ+زَ+لْ+بَ+لْ)-[اپ-ص-مذ-(مؤ: وا: ځلبله-ج: ځلبلې)]-زلقېدونکے-روښانه- چن كېدونکے-پنكېدونکے.

**ځلبل كول** :- (اص)-زلقول-چنكول-برېښول-پنكول.

**ځلبل كېدل** :- (اص)-زلقېدل-چنكېدل-برېښېدل-پنكېدل.

**ځلبلاند** :- (دْ+زَ+لْ+بَ+لا+نْ+دْ)-[اپ-ص-مذ(مؤ-وا: ځلبلانده-ج: ځلبلاندې)]-بې ارامه-پرېشانه-بې قراره-عمجن.

څو مينې ئې كړې قرارې
چې په غم وے ځلبلاندې (خوشحال)

**ځلبلاند كول** :- (اص)-بې ارامه كول-پرېشانول-غمجن كول.

**ځلبلاند كېدل** :- (اص)-بې ارامه كېدل-پرېشانه كېدل-غمجن كېدل.

وبنهٔ مخ وته له ورايه ځلبلاند شم
لكه ووينې لو غسے تال په سترګو (خوشحال)

**ځلبلاندول** :- (دْ+زَ+لْ+ب+لا+نْ+د+و+لْ)-[اپ-مص مت]-پرېشانه كـول-بـې ارامه كول-ناقلاره كول-غمجنول-ځلبلانول.

**ځلبلاندونه** :- (دْ+زَ+ل+ب+لا+نْ+د+و+نه)-[اپ-حمص]-پرېشان كونه-بې ارامه كونه-نا قلاره كونه- غمجنونه.

**ځلبلانـــدوُونكے** :- (دْ+زَ+لْ+ب+لا+نْ+د+وُو+نْ+كے)-[اپ-اس-فـاع-مـذ-وا-ج: ځلبلاندووُنكي (مؤ: ځلبلاندووُنكې)]-پرېشانه كوونكے-غمجنوونكے.

**ځلبلاندېـــدل** :- (دْ+زَ+لْ+ب+لا+نْ+دې+د+لْ)-[اپ-مـص لا]-پرېشـــانه كېـــدل- غمجن كېدل-ځلبلازېدل.

**ځلبلاندېدنـــه** :- (دْ+زَ+لْ+ب+لا+نْ+دې+د+نـه)-[اپ-حمـص]-پرېشـــانه كېدنـــه- ناقلاره كېدنه-بې ارامه كېدنه-غمجن كېدنه.

**ځلبلاندېـــدُونكے** :- (دْ+زْ+لْ+ب+لا+نْ+دې+دُو+نْ+كـے)-[اپ-مـف-مـذ-وا-ج: ځلبلاندېدُونكي-(مؤ: ځلبلاندېدُونكې)]-پرېشانه كېدُونكے-بې ارامه كېدُونكے-ناقلاره كېدُونكے-غمجن كېدُونكے.

**ځلبلانـــول** :- (دْ+ز+لْ+ب+لا+ن+و+لْ)-[اَف:پ (قـــاموس)-مـــص مـــت]او___ ځلبلاندول.

**ځلبلانېـــدل** :- (ر+ز+ل+ب+لا+نـــې+د+ل)-[اَف:پ (قـــاموس) مـــص لا]او___ ځلبلاندېدل.

**ځلبلـــے** :- (د+ز+ل+ب+لـے)-[اَف:پ (قـاموس) اس ص-مـذ-وا+ج: ځلبلې (مؤ: ځلبلې)]-روښانه-پرقېدُونكے-چنكېدُونكے-پنكېدُونكے.

**ځلښت** :- (د+ز+لْ+ش+ت يا ل+ خ+ت)-[اپ-ص-مذ]- زلق-چنك-پرق-چمك-ځلا-پنك.

**ځلك**:- (ز+لْ+ک) [اپ-اس- مذ] برېښنا- ځلا- ځلكا-رڼا- پړک- څرک، نور

**ځلكول** :- (د+ز+لْ+ك+و+ل)-[اپ-مص-مت]-زلقول-برېښول-چنكول-پرقول-ځلول-پنكول.

**ځلكېـدل** :- (د+ز+لْ+كـې+د+ل)-[اپ-مـص لا]-زلقېـدل-پـرق كـول-چنكېـدل-برېښېدل-ځلېدل- پنكېدل.

**ځلل** :- (دْ+ز+ل+ل)-[اَف: پ (قاموس)-اس-مذ]-ضرر-نقصان-ظلم.

**ځلمے** :- (دْ+زَ+لْ+مـے)-[اپ-اس-مـذ-وا-ج: ځلمي-ځلميـان-(مؤ: وا: ځلمې-ج: ځلميـانې)]-(۱) ځـوان-ځـوانې تـه نـژدې-زېلے-زېـے- ژېـے (۲) وز-سـاتلے شوے هلك.

**ځلميتوب** :- (دْ+زَ+لْ+يْ+تو+ب)-[اپ-اس-مذ]-ځوانې-زلميتوب-ځلمينه.

**ځلمينه** :- (دْ+زَ+لْ+يْ+نه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]او_____ ځلميتوب.

**ځلنـد**:- (د+ز+ل+ن+د)-[اپ-ص-مـذ]-مـؤ-وا: ځلنـد-ج: ځلنـدې]-(۱) ځلانـد-روښانه.

**ځلنـــدوكے** :- (د+زَ+لَ+نْ+دُو+كـے)-[اپ-اس ص-مـــذ-واج: ځلنـــدوكي-مـــؤ: ځلنـــدُونكې]-روښـــان-برېښېـــدونكے-پرقېـــدونكے-چنكېـــدونكے-زلقېدونكے.

**ځلـــوبى** :- (د+ز+لـــو+بى)-[اپ-ه:جلبېـــې-اس-مـــؤ]-يوتـــاؤ راتـــاؤ مشـــهور خوارهٔ-زلبېى.

**ځلوكـــه** :- (د+ز+لُو+كـه)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ-وا-ج: ځلـوكې]-د زړهٔ رګونه.

**ځلـول** :- (دْ+زَ+لْ+و+لْ)-[اپ-مـص مـت]-زلقـول-پرقـول-چنكـول- برېښـول-پنكول. ځلكول.

**ځلولے** :- (دْ+زَ+ل+و+لـے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ځلولي- (مؤ:ځلولې)]- زلقولے-پرقولے-چنكولے-برېښولے-پنكولے.

**ځلون** :- (د+ز+لُو+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-د اُوبو لـوے مشك چې په تېتو يا اس وړلے شي-راښيا.

**ځلونګ** :- (دْ+زَ+لْ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]او_____ ځلونه.

**ځلونـــه** :- (دْ+زَ+ل+و+نـه)-[اپ-حمـص]-زلقونـه-پرقونـه-چنكونـه-برېښـونه-پنكونه.

**ځلوونکے** :- (ځْ+زَ+ل+وُو+نْ+کے)-[اِپ-اس فاعِ-مذ-وا-: ځلوونکي (مؤ:وا: ځلوونکې)]-زلقوونکے-برېښوونکے-پرقوونکے-چنکوُونکے-پنکوونکے.

**ځله** :- (دْ+زْ+له)-[اِپ-اِس]-(۱) واره-ځل-پېرے-کرت.

**ځله** :- (د+ز+له)-[اَف: پ (قاموس)-ص]-پرېشانه-وارخطا-بې ارامه-سترے-ستومانه.

**ځله کول** :- (اَف)-اِص-پرېشانه کول-بې ارامه کول-سترے کول.

**ځله کېدل** :- (اَف)-اِص-پرېشانه کېدل-بې ارامه کېدل-سترے کېدل.

**ځلې** :- (دْ+زَ+لې)-[اِپ-اس]-(۱) کوشش-خواري-کړاك.

چارې واړه په قسمت شي

نۀ پـه ځلې نۀ په ځولې (خوشحال)

(۲) له الې سره يو ځائې راځي-په معني د منت زاري-لکه: الې ځلې. (۳) د ځل جمع-ډېر ځل-ډېر وار-ډېر کرته.

**ځلې کول** :- (اِص)-(۱) کوشش کول-خواري کول. (۲) منت زاري کول.

**ځلېدلے** :- (دْ+زْ+لې+دَ+لے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: ځلېدلي (مؤ: ځلېدلې)]-زلقېدلے-پرقېدلے-چنکېدلے-برېښېدلے-پنکېدلے.

**ځلېدل** :- (د+ز+لې+د+لْ)-[اِپ-مص لا]-پرقېدل-برېښېدل-چمك كول-چنکېدل-زلقېدل-پنکېدل.

**ځلېدنګ** :- (دْ+زْ+لې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس) حمص] و______ ځلېدنه.

**ځلېدنه** :- (د+ز+لې+د+نه)-[اِپ-حمص]-زلقېدنه-پرقېدنه-چنکېدنه-برېښېدنه-ځلېدۀ-ځلېدنګ-پنکېدنه.

**ځلېدُونکے** :- (د+ز+لې+دُو+نْ+کے)-[اِپ-فاعِ-مذ-وا-ج: ځلېدُونکي-(مؤ: ځلېدُونکې)]-زلقېدُونکے-پرقېدُونکے-چنې کېدُونکے-برېښېدُونکے-چمك کوُونکے-پنکېدُونکے.

**ځلېدۀ** :- (دْ+زْ+لے+دۀ)-[اِپ-حمص]-و______ ځلېدنه.

**ځم** :- (دْ+زْ+مْ)-[اِپ-فع]-فعل حال د واحد متکلم ضيغه-زۀ روان يم-ځمه.

**ځما** :- (دز+ما)-[اِپ-ضمير]- زما-دما-ابمو.

**ځما پر ځۀ** :- (اِص)-ځماځۀ-زما ورسره څۀ تعلق دے-ماته ئې څۀ زور رارسي-ځما پر ځۀ اړه-ځما پر ځۀ ګډه.

**ځما پر ځۀ اړه** :- (اِص)-و______ ځما پر ځۀ.

**ځما پر ځۀ ګډه** :- (اِص)-و______ ځما پر ځۀ.

**ځما په خيال** :- (اِص)-ځما په يقين زما د پوهې مطابق-ځومره چې زۀ پوهېږم ځما په ګمان.

**ځما په يقين** :- (اِص)-و______ ځما په خيال.

**ځماځماے** :-(ځما+دز+ما+ئې)-[اِپ (ظفر)-اِس-مؤ](۱) فرق-فرخ. (۲) حرص-لالچ.

**ځماځماے کول** :- (ظفر)-اِص-(۱) فرق کول-فرخ کول. (۲) حرص کول. لالچ کول.

**ځمبل** :- (د+ز+م+ب+لْ)-[اِپ-مص مت]-(۱) بائۀ ريول-ځمل.

د سترګو په ځمبل کښې مرګے دے

(۲) څنډل-(۳) بې عزته کول.

**ځمبلے** :- (د+ز+م+ب+لے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: ځمبلي (مؤ: ځمبلې)]-ځملے-يو تربله وهلے شوے-څنډلے-يو تر بله وهلے شوے.

**ځمبېدل** :- (د+ز+مْ+بې+د+لْ)-[اِپ-مص لا]-رو رو تلل-سست تلل.

**ځمـرے** :- (دز+م+رے)-[اَف (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: ځمري]-زمرے امزرے-مزرے.

**ځمکه** :- (دز+م+که)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-زمکه-مځکه-مزکه. (۲) تل- سطح.

**ځمل** :- (دْ+ز+م+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-ځمبل-بائۀ ريول.

**ځملے** :- (دْ+ز+مَ+لے)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-(مؤ: ځملې)]يو تر بله وهلے شوے-مبتلے شوے.

**ځمنه** :- (دز+م+نه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-وعده-قول-لوظ-اقرار.

**ځملي** :- (اَف)-اِص-وعده کول-قول لوظ کول-اقرار کول.

**ځمُونکے** :- (د+ز+مُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-فاعِ-مذ-وا-ج: ځمونکي (مؤ: ځمونکې)]-بائۀ ريوُونکے.

**ځموږ** :- (دز+مُو+ږْ)-[اِپ-ضمير-جمع متکلم]-زموږ-زمونږ-ايموژ-د موږ-دمو.

**ځنازه** :- (د+ز+نا+زه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ځنازې]-جنازه.

**ځناور** :- (دْ+ز+نا+و+رْ)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج:ځناوران (مؤ: وا: ځناوره-ج: ځناورې)]-(۱) جناور-حيوان-(۲) بې عقله-ناپوهه.

**ځنبل** :- (د+ز+م+ب+لْ)-[اِپ-مص مت]-ځنبول.و______ ځمبل.

**ځنبول** :- (د+ز+م+ب+و+لْ)-[اِپ-مص مت]- ځنبل-ځمبل.

هـسې زر زر ځـنبول د بڼو نۀ وي

لکه درومي له دنيا نه رحمان زر زر

**ځنځ** :- (دْ+زَ+نْ+دزْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-زنځ-خوره-پتکړي.

**ځنځري** :- (دْ+ز+نْ+دز+ري)-[اِپ-اِس-مؤ] يو قسم کشيده چې د ځنځير په شان وي.

**ځنځلبر** :- (دْ+زَ+ذْ+دز+لې+ر)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: ځنځلبرونه]-يـو قسـم تـور ځونډے چې د کېږدۍ د پاسـه ئې د ښائست پـه ډول اوېزاندوي.

**ځنځـول** :- (د+ز+نْ+د+ز+و+لْ)-[اِپ-مص مت]-(۱) ټکے ټکے يا ځاځکے ځاځکے تويول. (۲) په شومتيا سره څۀ څيز ورکول.

**ځنځولی** :- (د+زَ+نْ+د+زو+لی)-[اِپ (شن)-اِس-مؤ]-ډنډولی.

**ځنځـولے** :- (دْ+زَ+نْ+دْ+ز+و+لے)-[اِپ-مف-مذ-وا]-ځاځکے ځاځکے چاڼ شوے.

**ځنځوونکے** :- (د+ز+نْ+د+ز+وُو+نْ+کے)-[اِپ-اس فاع-مذ-وا-ج: ځنځوونکي (مؤ: ځنځوونکې)]-ځاځکے ځاځکے چاڼ کوُونکے.

**ځنځه** :- (دْ+ز+ن+د+زه)-[اِپ-اِس-مؤ-وا-ج: ځنځې]-(۱) زنځه-سر سوبله-شوبلکه.

د زړګي نه مې چاپېر شوه د غم ځنځه

يقين نۀ دے چې به روغ شم له دې رنځه (احمدين طالب)

(۲) چيچړ بنيادم-لالچي.

**ځنځي** :- (د+ز+نْ+د+زي)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-د زنا ناؤ يو قسم کالے-زنځيرك.

**ځنځېدل** :- (د+ز+نْ+دْ+زې+د+لْ)-[اِپ-مص لا]- څڅېدل-ځاځکے توئېدل.

**ځنځير** :- (د+زَ+نْ+د+زي+ر)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: ځنځيرونه] زنځير.

**ځنځير په پښو** :- (اِص-(۱) په پښو ترلے-پښوته زنځير اچولے شولے-قيد. (۲) د وادۀ يا د بال بچ په غم کښې نښتے.

**ځنځير په غاړه** :- (اِص)-(۱) طوق په غاړه-مغزے په پړي ترلے. (۲) غلام-

تابعدار.

**ځنځير په لاس** :- (اص)-په اتکړو کښې ترلے-بنديوان.

**ځنځير ګرځول** :- (اص)-(۱) سرکاري ولقه کښې راوستل-ماتحت کول. (۲) په سرکاري ډول زمکه وېشل-په زنځير کول.

**په زنځير تړل** :- (اص)-(۱) زنځير غاړې ته وراچول. (۲) قابو کول-لاش ته کول.

**په زنځير کول** :- (اص)-و______ ځنځير ګرځول.

**په ځنځير کېدل** :- (اص)-پيمائش کېدل-په سرکاري ډول زمکه وېشلے کېدل.

**ځنځيرکه** :- (د+ز+نْ+د+ي+ر+که)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] د رېښمو يو قسم کشيده.

**ځنځيرى** :- (د+ز+نْ+د+زِي+رى)-[اپ-اِس-مؤ]-يو قسم د ليك انداز چې خوشحال خان ختك د خپلې کورنۍ د ليك لوست د پاره جوړ کړے ؤ.

**ځنځول** :- (د+ز+نْ+خ+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-بېهوشي پرې راتلل-په زړۀ د خفګان چپې راتلل.

**ځنډ** :- (دْ+ز+نْ+ډْ)-[اپ-اِس-مذ]-ډيل-ايسارتيا-تاخير-دېري.

ټپه: اذان په ځنډ کوه طالبه
زۀ د جانان غېږې ته اوس ورسېدمه!

**ځنډ کول** :- (اص)-ډيل کول-ايسارېدل-تاخير کول-دېري کول.

**ځنډمن** :- (د+زَ+نْ+ډ+م+نْ)-[اپ (ب، خ)-اِس ص-مذ]-د خپل وخت نه روستو پاتې شوے-ځنډن.

**ځنډن** :- (دْ+زَ+نْ+ډ+نْ)-[اپ-اِس ص-مذ]-پخوانے-وراندينے-د ډېري مودې.

دا دوه ځنـډن دي په دې عالم کښې
نـادان بـې غمه دانا په غم کښې (خوشحال)

**ځنډنے** :- (د+زَ+نْ+ډ+نے)-[اپ-ص-مذ]-اټال-ايسار-معطل.

**ځنډنے کوکو** :- (ځنډنے+کو+کو)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-پتوني ګل.

**ځنـډول** :- (د+زَ+نْ+ډ+و+ل)-[اپ-مص مت]-ډيل ورکول. ايسارتيا په کښې راوستل-اټالول.

**ځنـډولے** :- (د+ز+ن+ډ+و+لے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ځنـډولي (مؤ: ځنـډولې)]-ايسار کړے-معطل کړے-ډيل ورکړے-اټال کړے.

**ځنـډون** :- (دْ+زَ+نْ+ډُ+و+نْ)-[اپ-اِس-مذ]-ايسـارتيا-ډيـل-اټالتيـا-معطلي-درنګ.

**ځنډونګ** :- (دْ+زَ+نْ+ډ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و____ ځنډېدنه.

**ځنډونه** :- (دْ+زَ+نْ+ډ+و+نه)-[اپ-حمص]-ځنډونګ-ايسارونه-اټالونه-معطل کونه-ډيل ورکونه.

**ځنډوُونکے** :- (د+زَ+نْ+ډ+وُو+نْ+کے)-[اپ-اس فاع-مذ-وا-ج: ځنډوُونکي-(مؤ: ځنډوُونکې)]-اټالووُنکے- ډيل ورکووُنکے-ايسارووُنکے.

**ځنډېدل** :- (د+زَ+ن+ډ+ې+د+ل)-[اپ-مص لا]-ايسارېدل-اټالېدل-معطل کېدل-ډيل په کښې کېدل.

**ځنډېـدلے** :- (دْ+زَ+نْ+ډ+ې+دَ+لے)-[اپ-مـف-مـذ-وا-ج: ځنډېـدلي (مـؤ: ځنډېـدلې)]-ايسـار شـوے-اټـال شـوے-معطـل شـوے-ډيـل پـه کښـې شوے.

**ځنډېدنګ** :- (دْ+زَ+نْ+ډ+ې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و___ ځنډېدنه.

**ځنډېدنه** :- (دْ+زَ+نْ+ډ+ې+د+نه)-[اپ-حمص]-ځنډېدنګ-ځنډېدۀ-ايسارېدنه-اټالېدنه-ډيل په کښې راتلنه-معطل کېدنه.

**ځنډېدونکے** :- (دْ+زَ+نْ+ډ+ې+دو+نْ+کے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ځنډېدُونکي-(مؤ: ځنډېـدُونك)] ايسـارېدُونکے-اټالېـدُونکے-معطـل کېـدُونکے- ډيـل پـه کښې کېدُونکے.

**ځنډېدۀ** :- (د+زَ+نْ+ډ+ې+دۀ)-[اپ-حمص]-و______ ځنډېدنه.

**ځنې** :- (د+زَ+نْ+ړے)-[اپ-اِس-مذ-وا-ج: ځنې-(مؤ: ځنې)]-زنې-ژنې-زلمے-بلوغ ته رسېدلے.

**ځنغلي** :- (دْ+زَ+نْ+غَ+لِيْ)-[اپ (ب،خ)-اِس-مذ-ج]-زوړ او مبتلي پرتوګ ته دبډې يا دپاسه مخه د کېږې نوې ټوټه لګول-دے ته ځنغلي اچول وائي.

**ځنکندن** :- (دْ+زَ+نْ+کَ+نْ+دَ+نْ)-[اپ-اِس-مذ]-زنکندن-د ژوند اخري سلګۍ-د مرګ وخت د نزع حالت.

لـه ژونـدو له مړو دواړو وي وتلے
چې د عشق په ځنکندن وي لکه زۀ (علي خان)

**ځنګر** :- (د+زَ+نْ+ګَ+ر)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-بېهوشه-بېخوده.

**ځنګر کېدل** :- (اص)-بېهوشه کېدل-بېخوده کېدل.

**ځنګر کېدل** :- (اص)-بېهوشه کېدل-بېخوده کېدل.

**ځنګل** :- (د+زَ+نْ+ګَ+لْ)-[اپ-اِس-مذ-وا-ج: ځنګلونه]-جنګل-بن-محاوره: (په ځنکل کښې زېږېدل-په بازار کښې لويول) يعني خپل اولاد ته تعليم د ښاريې د خلقو په شان ورکول او خوانمردتوب او زړۀ ورتيا تربيت ئې لکه د غرۀ او ځنګل د خلقو کول.

سر کشان به په قيامت پاڅي سرکوزي
د ځنګل پـه مزل تيټ ځي له ناکام لوړ (حميد)

**ځنګل څېړے** :- (ځنګل+تسې+رے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: ځنګل څېړي]-يو قسم بُوټے چې د دارو په ډول استعمالېږي او ځناور ئې د ګيا په طور هم خوري.

**ځنګل ګړى** :- (ځنګل+ګ+ړى)-[اپ-(ظفر)-اِس-مؤ]-هغه مکان چې د ځنګل ساتندويه په کښې اوسي.

**ځنګلي** :- (د+ز+نْ+ګ+لي)-[اپ-اِس ص]-د ځنګل سره تعلق لرُونکے-جنګلي-وحشي-کم عقل.

**ځنګورے** :- (دْ+زَ+نْ+ګُو+رے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-د انګور ګچه-ډنډورے.

**ځنې** :- (دْ+ز+نې)-[اپ-حرف]-(۱) بعضې-لکه: ځنې وُلولي ملاشي-ځنې وُلولي بلاشي-(۲) څخه-ترې نه-ورنه-ورڅخه.

څوك چې لب کا سره بيرته
ځـنې تـوئې شـې شکرې (خوشحال)

**ځنې ځني** :- (اص)-بعضې بعضې-څوك څوك- بعضې خلق.

ځـنې ځـنې ولـيان پېـغمبران کړل
نـۀ چې هر سړے ولي او پيغمبر دے (رحمٰن)

**ځو** :- (دْ+زو)-[اپ-فع]-د جمع متکلم صيغه-مونږ روان يو-ځوُ-درومو.

**ځواب** :- (د+ز+وا+بْ)-[اپ-اِس-مذ-وا-ج: ځوابونه]-جواب.

د رسول له غمه زړۀ زما ذرې شۀ
څۀ به وايم داستاځي لـه ځواب (علي خان)

**ځواب ورکول** :- (اص)-(۱) د چا دخبرې په جواب کښې څۀ وئيل-ځواب وئيل. (۲) انکار کول.

**ځواب وئيل** :- (اص)-و ______ ځواب ورکول.

**ځـواب لوڅے** :- (ځواب+لو+تسے)-[اپ-اِس-مـذ-وا-ج: ځـواب لوڅي]حاضـر جواب.

**ځواب ګیر** :- (ځواب+ ګيِ+رْ)-[پ-(ب-ح] ص]-ځوابي-منکر.

**ځوابي** :- (د+ز+وا+بي)-[پ (ب-خ) ص]-ځوابي-منکر.

**ځوابي** :- (دْ+ز+وا+بي)-[پ (ب-خ)-ص-]-وا______ ځواب ګیر.

**ځواک** :- (دز+وا+کْ)-[پ-اِس-مذ]-(۱) ژواك-ژوند. (۲) ګذاره.

**ځواله** :- (دز+وا+له)-[اَن:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-ځومنه-زومنه-ښورا-ځواوله-ځواونه-زېمنه.

**ځوان** :- (دز+و+ن)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: ځوانان (مؤ: وا: ځوانه-ج: ځوانانې)] (۱) جوان-بالغ شوی-زلمی. (۲) بهادر-زړه ور.

**ځوان ختل** :- (اِص-بهادر ثابت کېدل-زړه ورکېدل.

**ځوان زلمی** :- (اِص)-ځوانۍ ته رسېدلی-ښۀ ځوان-ښکلی زلمی.

**ځوان توب** :- (ځوان+تو+بْ)-[پ-اِس-مذ]-(۱) ځوان والی-ځواني. (۲) بهادري-زړۀ ورتوب-مړانه.

**ځوانکه** :- (دز+وا+نَ+که)-پ-اِس-مؤ-وا-ج: ځوانکې]-هغه دانې یا ګومکې چې د ځوانۍ په شروع کښې د زلمیتوب د جوش نه په مخ راخېژي-ځوانکي.

پهٔ لحد کښې هغه مخ خورې په چنجیو
چې د هېچا پرې پېرزونۀ وه ځوانکه (خوشحال)

**ځوانکۍ** :- (دز+وا+ن+کۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]و______ ځوانکه.

**ځوانکی** :- (دز+وا+ن+کی)-[پ-اِس-تصغیر-مذ-وا-ج: ځوانکي-مؤ: ځوانکۍ)]-ځوان-نوجوان-زلمی.

**ځوانمرد** :- (دز+وا+نْ+مَ+د+د)-[پ-اِس ص-مذ-وا-ج: ځوانمردان-(مؤ: ځوانمرده-ج: ځوانمردې)]-نر-بهادر-مړنی-زړۀ ور.

**ځوانمردي** :- (ځوان+مَ+رْ+دِيْ)-[پ-اِس-مؤ]-جوانمردي-نرتوب-مړانه-بهادري-زړه ورتوب.

**ځوانمرګي** :- (ځوان+م+ر+ګي)-[پ-اس ص-مؤ]-جوانمرګي-د ځوانۍ مرګ-په زلمیتوب کښې مرګ.

**ځوانول** :- (دز+وا+ن+و+لْ)-[پ-مص مت]-جوانول-ځوان کول-طاقت ورکول.

**ځوانوونکی** :- (دز+وا+ن+وُو+نْ+کی)-[پ-اِس فاع-مذ-وا-ج: ځوانووُنکي (مؤ: ځوانووُنکې)]-ځوان کووُنکی-جوانووُنکی-طاقت ور کووُنکی.

**ځوانه** :- (دز+وا+نه)-[پ-اِس-مؤ-وا-ج: ځوانې]-د ځوان مؤنث-ځوانۍ ته رسېدلې پېغله.

**ځوانه جهانه** :- (اِص)-پېغله-په شباب کښې ښۀ ځوانه.

**ځوان ځواني** :- (اِص) د ځوانۍ عمر-د ځوانۍ ورځې-د ځوانۍ موده-په ځوانۍ کښې.

**ځواني** :- ((دز+وا+نِي)-[پ-اِس-مؤ]-(۱) جوانې-زلمیتوب-شباب.

پــه ځوانۍ کښې ئې ټپ ټیپ لکه هره کړم
بېــلــتانــۀ مــې ګټې کښېښودې په ولیو (علي خان)

**ځوانۍ کول** :- (اِص)-مړانه کول-مروت کول.

**په ځوانۍ کښې** :- (اِص)-مړانه کول-مروت کول.

**په ځوانۍ کښې** :- (اِص)-د ځوانۍ په عمر کښې-په ژېیتوب کښې-په شباب کښې.

**د ځوانۍ عمر** :- (اِص)-د ژېیتوب عمر-د زلمیتوب عمر-د ځوانۍ ورځې-دځوانۍ مده.

**د ځوانۍ مده** :- (اِص)-و______ د ځوانۍ عمر.

**د ځوانۍ ورځې** :- (اِص)-و______ د ځوانۍ عمر.

**ځوانېدل** :- (دز+وا+نې+د+ل)-[پ-مص لا]-(۱) ځوان کېدل-زلمی کېدل. (۲) طاقت موندل.

**ځوانېدنه** :- (دز+وانې+د+نه)-[پ-حمص]-جوانېدنه-ځوان کېدنه-زلمی کېدنه.

**ځوانېدونکی** :- (دز+وا+نې+دُو+نْ+کی)-[پ-مف-مذ-وا-ج: ځوانُېدونکي (مؤ: ځوانېدُونکې)]-جوانېدونکی-ځوان کېدُونکی-زلمی کېدُونکی.

**ځوانیمرګ** :- (دز+وا+نِي+م+ر+ګ)-[پ-اِس ص-مذ (مؤ-وا: ځوانیمرګه ج: ځوانیمرګې)]-جواني مرګ-هغه څوك چې په ځوانۍ کښې مړشي-په زلمیتوب کښې مړ.

**ځوانمیرګ مړکېدل** :- (اِص)-په ځوانۍ کښې مړکېدل-د خپل طبعي مرګ نه مخکښې مړ کېدَل.

که په عشق کښې ځوانیمرګ مرمه ناصحه
کــاش کــه بــیاهــم وم دغــه مهینه نیض (حمید)

**ځواوله** :- (دز+وا+و+له)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-و______ ځواله.

**ځواونه** :- (دز+وا+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]و______ ځواله.

**ځوبل** :- (د+زو+ب+لْ)-[پ-ص-مذ (مؤ-وا:ځوبله-ج: ځوبلې)]-ژوبل-زخمي-پرهر ژلی. پراژلی

**ځوبلول** :- (د+زو+بْ+لْ+و+لْ)-[پ-مص مت]-ژوبلول-زخمي کول-پرهر ژلی کول.

**ځوبلونه** :- (د+زو+بْ+لْ+و+نه)-[پ-حمص]-ژوبلونه-زخمي کونه.

**ځوبلوونکی** :- (دزو+بْ+ل+وو+ن+کی)-[پ-اِس فاع-مذ-وا-ج: ځوبلوُونکي (مؤ: ځوبلوونکې)]-ژوبلوُونکی-زخمي کوونکی.

**ځوبلېدل** :- (د+زو+بْ+لې+د+لْ)-[پ-مص لا]-ژوبلېدل-زخمي کېدل.

**ځوبلېدُونکی** :- (د+زو+بْ+لې+دُو+نْ+کی)-[پ-مف-مذ-وا-ج: ځوبلېدُونکي (مؤ: ځوبلېونکې)]-زوبلېدُونکی-زخمي کېدونکی.

**ځور** :- (دْ+زَ+و+ر)-[پ-فا: جور-اِس-مذ]-تکلیف-کړاك-ظلم-اواز درد.

نور عالم بې غمه، زۀ دائم په درد و غم کښې
عشق نــۀ دے بلا دے چې ئې ونیوم په ځور (خوشحال)

**ځور** :- (د+زُو+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-(مؤ-وا: ځوره:ج: ځورې)]-تېز اورېدُونکی-چې غوږونه ئې تېرۀ وي تېرۀ غوږے-په غوږونو څك.

**ځورتوب** :- (ځور+تو+بْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-ځورتیا-تېز اورېدنه.

**ځورتیا** :- (ځور+ت+یا)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-و____ ځورتوب.

**ځوروبي** :- (د+زو+رو+بِيْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-جورابې.

**ځورول** :- (دْ+زو+و+لْ)-[پ-مص مت]-اوازول-تکلیف ورکول-کړول-غمجنول.

**ځورول** :- (د+زُو+ر+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص-مت]-ځورکول-هضم کول.

**ځورولی** :- (د+زو+ر+وَ+لی)-[پ-مف-مذ-وا-ج: ځورولي (مؤ: ځورولې)]-اوازولی-تکلیف ورکړے شوے-غمجن کړے-کړولی.

**ځورونګ** :- (دْ+زَو+ر+وَ+نْ+ګْ)-[اَف-پ (قاموس)-حمص]و______ ځورونه.

**ځورونه** :- (د+زو+ر+و+نه)-[پ-حمص]-ځورونګ-تکلیف-ورکونه-اوازونه-کړونه.

**ځوروونکی** :- (د+زو+ر+وُو+نْ+کی)-[پ-اِس فاع-مذ-وا-ج: ځوروونکي-(مؤ: ځوروونکې)]-اوازووُنکی-تکلیف ورکووُنکی-کړووُنکی-غمجن کوونکی-په کړاك اخته کوونکی.

**ځوره** :- (دْ+زُوْ+ره)-[اَف:-پ (قاموس)-اِس-مؤ]-[اَف:پ (قاموس)-اِس-

مؤ]-هضم.

**ځوربدل** :- (د+زَو+رې+د+لْ)-[اپ-مص لا]-غمجن کېدل-دردېدل-تکليف رسېدل-کړېدل.

**ځوربدل** :- (دْ+زُو+رې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص لا]-هضم کېدل.

**ځوربدلے** :- (دْ+زَو+رې+دَ+لے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ځوربدلي-(مؤ:ځوربدلې)]-غم-خفه کړے شوے-تکليف رسولے شوے-کړېدلے-کړاك رسېدلے.

**ځوربدنگ** :- (د+زو+رې+د+ن+گ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و___ ځوربدنه.

**ځوربدنه** :- (دْ+زو+رې+د+نه)-[اپ-حمص]-ځوربدنگ-تکليف رسېدنه-کړېدنه-غمجن کېدنه- خفه کېدنه.

**ځوربدُونکے** :- (د+زو+رے+دُو+ن+کے)-[اپ-فاع-مذ-وا-ج: ځوربدونکي (مؤ: ځوربدُونکې)-خفه کېدونکے-غمجن کېدونکے-کړېدُونکے.

**ځوربدهٔ** :- (د+زو+رې+دهٔ)-[اپ-حمص]-خفگان-کړاك.

**ځوړ** :- (دز+و+ړ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-د لوړ ضد-مخ په کښته مزکه-ځوږ ، لکه د کوتې ځوږ ، يا پلانے په ځوږ دے .

**ځوړتوب** :- (ځوړ+تو+بْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-ځوړتيا-مخ په کښته والے-ځوړوالے.

**ځوړتيا** :- (ځوړ+تْ+يا)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-و___ ځوړتوب.

**ځوړوالي** :- (ځوړ+وا+لي)-[اَف: پ (قاموس)-اس-مذ]و_____ ځوړتوب.

**ځوړند** :- (دز+و+ړ+نْ+د)-[اپ-ص-مذ-(مؤ-وا: ځوړنده-ج: ځوړندې)]-اوېزان-اوېزاند-راللبدلے-ځوېږند.

ځوړند سر لکه غنچه مراقبه که حميد

**ځوړند کول** :- (اص)-ځوړندول-اوېزان کول-اوېزاندول-راللول.

**ځوړند کېدل** :- (اص)-ځوړندېدل-اوېزان کېدل-اوېزاندېدل-راللبدل.

**ځوړندتوب** :- (ځوړند+تو+بْ)-[اپ-اس-مذ]-ځوړند-تو+بْ)-[اپ-اس-مذ]-ځوړندتيا-ځوړندوالے-اوېزاندېدنه.

**ځوړندوالے** :- (ځوړند+وا+لے)-[اپ-اس-مذ]-و____ځوړندتوب.

**ځوړندول** :- (دز+وَ+ړ+نْ+د+و+لْ)-[اپ-مص مت]-اوېزاندول راللول.

**ځوړندونگ** :- (دز+و+ړ+نْ+د+و+ن+گْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و___ ځوړندونه.

**ځوړندونه** :- (دز+و+ړ+نْ+د+و+نه)-ځوړندونگ-اوېزاندونه-للونه.

**ځوړندوونکي** :- (دز+و+ړ+ن+د+وو+ن+کے)-[اپ-اس فاع-مذ-وا-ج: ځوړندوونکي (مؤ: ځوړندُونکې)]-اوېزاندوونکے-للکوونکے.

**ځوړندے** :- (دز+و+ړ+نْ+دے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: ځوړندې]-په کور کښې د تږکرې يا گرلاځې په شان راځوړند ځيز چې څهٔ ځيز په کښې کښېښودے شي-کورے.

**ځوړندبدل** :- (دز+و+ړ+ن+دې+د+ل)-[اپ-مص لا]-اوېزاندبدل.

**ځوړندبدنگ** :- (دز+و+ړ+ن+دې+د+نْ+گْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و_ ځوړندبدنه.

**ځوړندبدنه** :- (دز+د+ړ+ن+دې+د+نه)-[اپ-حمص]-ځوړندبدنگ-اوېزاندبدنه-راللبدنه-ځوړندبدهٔ.

**ځوړندبدُونکے** :- (دز+و+ړ+نْ+دې+دُو+ن+کے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ځوړندبدونکي-(مؤ: ځوړندبدونکې)]-اوېزاندبدونکے-راللبدونکے.

**ځوړندبدهٔ** :- (دز+و+ړ+نْ+دې+دهٔ)-[اپ-حمص]-و_____ځوړندبدنه.

**ځوړوبے** :- (دْ+زُو+ړو+بے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: ځوړوبي]-ځړوبے-جړوبے-جړابے-زاوهٔ-ابشار.

**ځوړول** :- (دز+و+ړ+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-مزکه کښته کول-ژوره کول-مزکه زورول.

**ځوړونگ** :- (دز+و+ړ+و+نْ+گْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و_____ ځوړونه.

**ځوړونه** :- (دز+و+ړ+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-ځوړونگ-مزکه کښته کونه-مزکه ژوره ونه-مزکه زورونه.

**ځوړوونکے** :- (دز+و+ړ+وو+ن+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اس فاع-مذ-وا-ج: ځوړونکي-(مؤ: ځوړوونکې)]-مزکه کښته کوونکے-مزکه ژوروونکے-مزکه زوره کوونکے.

**ځوړېدل** :- (دز+و+ړې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص لا]-مزکه کښته کېدل-مزکه ژوره کېدل.

**ځوړېدنگ** :- (دز+و+ړې+د+ن+گْ)-[اَف:پ (قاموس) حمص]و_____ ځوړېدنه.

**ځوړېدنه** :- (دز+و+ړې+د+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-ځوربدنگ مزکه کښته کېدنه- مزکه ژوره کېدنه.

**ځوړېدونکے** :- (دز+و+ړې+دُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: ځوړېدونکي-(مؤ: ځوړېدونکې)]-کښته کېدونکے-ژورېدونکے.

**ځوز** :- (د+زو+زْ)-[اپ-اِس-مذ-وا-ج: ځوزان]-يو ازغن پوټے چې اوښان ئې خوري-تنده.

د نور وزلــه فـېض بُوټي خالي نهٔ وي
فېض ئې رسي هم تر سپاندې هم تر ځوز (خوشحال)

**ځوزخانه** :- (ځوز+خا+نه)-[اپ (ظرف)-اِس-مؤ]-هغه ځپر چې د ځوز بُوټي پرې اچولے شي او د گرمۍ په موسم د گرمۍ نه د امن په خاطر استعمالېږي-ځوزکوډې.

**ځوزکوډې** :- (ځوز+کوْ+ډې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]و_____ ځوزخانه.

**ځوزگوړې** :- (ځوز+گُوْ+ړې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-گوړې-زور ځاوله-ترنجبين.

**ځوزن** :- (د+زو+ز+نْ)-[اپ-ص-مذ-(مؤ-وا: ځوزنه-ج: ځوزنې)]-ازغن-چې اغزي وي په کښې.

**ځوزيانه** :- (ځوز+يا+نْ+ړه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ځوزيانې]-اغزيانه-اغزنه علاقه.

**ځوزي ماځوزي** :- (د+زُو+زِيْ+ما+دْ+زُو+زِيْ)-[اپ-اس-]ياجوج ماجوج.

**ځوږ** :- (دزْ+وَ+ز يا گْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-زوږ-شور.

**ځوښ** :- (د+زو+شْ ياخ)-[اپ-اِس-مذ]-(۱) جوش. (۲) تاؤ-غصه.

**ځوښ کول** :- (اص)-(۱) جوش کول-ايشېدل-ځوښېدل. (۲) غصه کول.

**ځوښ ورکول** :- (اص)-ايشول-ځوښول.

**ځوښا** :- (دْ+زو+شا يا خا)- [اَف: پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ځوښاوې]-د څهٔ خوږ ځيز شيره.

**ځوښول** :- (د+زو+ش+و+لْ)-[اپ-مص مت]-ځوښ ورکول-ايشول-جوش ورکول.

**ځوښولے** :- (دْ+زو+ش يا خ+ و+لے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ځوښولي (مؤ: ځوښولې)]- ځوښ ورکړے-جوش کړے-ايشولے.

**ځوښونه** :- (د+زو+ش يا خ+و+نه)-[اپ-حمص]-جوشونه-ځوښ ورکونه-ايشونه.

**څوښـــوونکے** :- (دْ+زو+ش يــا خ+ وُوْ+نْ+کــے) -[پ-اس فــا ع-مـــذ -وا -ج: څوښوونکي (مؤ: څوښوونکې)] -جوش ورکوونکے-ايشوونکے.

**څوښېدل** :- (دْ+زو+شې يا خې+د+لْ) -[پ-مص لا] -څوښ کول- جوښ خوړل- ايشېدل.

**څوښېدلے** :- (دْ+زو+شې يا خې+د+لے) -[پ-مف-مذ -وا -ج: څوښېدلي -(مؤ: څوښېدلې)] -جوشېدلے -ايشېدلے-جوش خوړلے.

**څوښـــېدنګ** :- (دْ+زو+شــې يــا خــې+ د +نْ+ګْ) -[اَف:پ (قــاموس) -حمـص] - و________ څوښېدنه.

**څوښېدنه** :- (دْ+زو+شې يا خې+دْ+نـه) -[پ-حمـص] -څوښـېدنګ-څوښـېدۀ- جوش خوړنه- ايشېدنه- جوشېدنه.

**څوښـــېدُونکے** :- (دْ+زو+شــې يــا خــې+ دُو+نْ+کــے) -[پ-فــا ع-مـــذ -وا -ج: څوښـېدونکي (مـؤ: څوښـــېدونکې)] -جـوش جـوړونکے -ايشــېدونکے - جوشېدونکے.

**څوښېدۀ** :- (دْ+زو+ شې يا خې- دۀ) -[پ-حمص] -و ____ څوښېدنه.

**څوکے** :- (دْ+زو+کے) -[پ (ظفر) -اِس-مذ -وا -ج: څوکي] -ستغ-زوېړناکه لاړ.

**څوګ** :- (دزْ+وَ+كْ) -[اَف:پ (قاموس) -اِس-مذ] -يو بد پويـه غرئيـز بُـوټے دے چې ښځې ئې وچ او مېده کړي او بيا ئې د ماشومانو په ترخونو وغېره کښې اچوي.

**څول** :- (دْ+زُوْ+لْ) -[پ-اِس-مذ] -زول-سخته يخني اوسيلۍ-سيلۍ او باران.

**څول** :- (دْ+ز+وَ+لْ) -[اَف:پ (قاموس) - اِس-مذ] -دمور پوئېن.

**څولانه** :- (دْ+زو+لا+نـه) -[پ-اِس-مـؤ-وا -:ج: څـولانې] -څـولنـه-زولنـه-زولانـه-د پښو زنځير-بېړۍ.

د يار زلفې مې و پښوته څولانه شوې
هم ژورې مې لـګيا په لړمانۀ شوې (علي خان)

د خوشحال په دودبه ستا ورته پراتۀ وي
چې پـــه پښوئې ستا د زلفو څولانې کړې

**څولنه** :- (دْ+زَو+لْ+نه) -[پ-اِس-مؤ-وا -ج: څولنې) -و ______ څولانه.

خوبرويان به دې قېدونه په ځان کښېږدي
څولنه غوندې کـــه پښه نيوه بختيار کړې (علي خان)

**څولـه** :- (دْ+زو+لـه) -[اَف:پ (قـاموس) -اِس-مـؤ-وا -ج: څـولې] -(۱) زوړ قـميص چې لاندې ورتـه استر لګېدلے وي. (۲) لـوے او اوږد غـونـدې چې د بـزو دويښتونه جوړوي او په اوښ بارکېږي.

**څوله څوله کېدل** :- (اَف) -اِص-(۱) سست سست کېدل-شـلم شلم کېـدل-(ظفـر) - (۲) څوړندېدل-ځړېدل.

**څولۍ** :- (د+زو+لۍ) -[پ-اس-مؤ] - جولۍ-لمن.

**څـولۍ ګلونـه** :- (څولۍ+ګُ+لُوْ+نـه) -[پ-اِس معرفـه-] د ماسټر عبـدالکريم د پښتو اافسانو چاپ شوے کتاب.

**څومبک** :- (دْ+زُوْ+مْ+ب+كْ) -[پ-اِس-مذ] -زومبك- ګچه.

**څومبکے** :- (د+زو+مْ+بْ+کے) -[اَف: پ (قـاموس) -اِس-مـذ -وا -ج: څـومبکي] -د زنانـاؤ دغوړ يو قسم کالے-جومکه.

**څومبول** :- (دْ+زُوْ+مْ+ب+و+لْ) -[اَف:پ (قاموس) -مـص مـت] -(۱) حرکت کښـې راوستل-خوزول. (۲) سستول-وروکول.

**څومبـولے** :- (د+زُوْ+مْ+ب+و+لـے) -[اَف:پ (قـاموس) مف-مـذ -وا -ج: څـومبـول- (مؤ: څومبولې)] -(۱) حرکت کښـې راوستے-خوزولے. (۲) سست کـړے- وروکړے.

**څومبونـــګ** :- (دْ+زُوْ+مْ+ب+وَ+نْ+ګْ) -[اَف:پ (قـــاموس) -حمـــص]و_____ څومبونه.

**څومبونـه** :- (د+زُوْ+م+ب+و+نـه) -[اَف:پ (قـاموس) -حمـص] -(۱) څومبونـګ- حرکت کښې راوستنه-خوزونه. (۲) سستونه-وروکونه.

**څومبېـدل** :- (دْ+زُوْ+مْ+بـې+د+لْ) -[اَف:پ (قـاموس) -مـص لا] -(۱) ســستېدل- وروکېدل. (۲) حرکت کول-خوزېدل.

**څومبوونکے** :- (دْ+زُوْ+مْ+ب+وُوْ+نْ+کے) -[اَف:پ (قـاموس) -اِس فـا ع-مـذ -وا -ج: څومبـوونکي (مـؤ: څومبېـدُونکې)] -ســست رفتـار کـوونکے-ورو تـګ کوونکے-خوزېدُونکے.

**څومبېدۀ** :- (د+زُوْ+مْ+بې+دۀ) -[اَف:پ (قاموس) -حمص] و_____ څومبېدنه.

**څومنه** :- (دْ+زو+مْ+نه) -[پ-اِس-مؤ] -زومنه-زمېنه- ښوروا -څواله.

**څون** :- (دز+و+نْ) -[پ (ب،خ) -اِس-مذ] -د ګلال بټۍ.

**څونـډے** :- (دْ+زُوْ+نْ+ډے) -[پ-اِس-مـذ -وا -ج: څونـډي-څونـډيان] -طـره- کلغي-

که د ستار په تندي کج ږدمه ګرم نۀ يم
څونډي تل وي د بلبل په نوبهار کج (علي خان)

**څونګـه** :- (د+زو+نْ+ګـه) -[اَف:پ (قـاموس) -اِس-مـؤ] -عـادت-فطـرت-شـان- نزدېوښت.

**څوئے** :- (د+زو+ئې) -[پ-اِس-مذ -وا -ج: ځامن] -زوے-نارينه اولاد.

**څوېړ** :- (دز+وے+ړْ) -[پ-اِس-مذ] -د ستغ ضد -کښته-د تـل يا فـرض خواتـه تلل- د غرۀ نه د راکوزېدو مخه.

**څوېړند**:- (دز+وې+ړ+نْ+دَ) -[پ (ب،خ) -اِس-مذ] -و______ څوړند.

**څوېښل** :- (دز+وې+شْ+لْ+يا خ +لْ) -[پ (کاکړ) مص-مت] -څېښل-چوپل.

سپينه خلۀ به دې څوېښمه
غـــاښـــونـــه نـۀ درلګومه (کاکړي لنډۍ)

**څه** :- (د+زه) -[پ-فعل امر] -جه-څۀ- روان شه-لاړشه.

**څۀ** :- (د+زۀ) -[پ-ضمي متکلم] -زۀ.

ياو ماسره سيالان کا
زۀ له هـر چايم ادنا (علي خان)

**څئ** :- (د+ز+ئ) -[پ-امر-ج] -درومئ-روان شئ-لاړ ئ.

**څي** :- (د+زي) -[پ-فعل] -درومي-روان دے يا روان دي-ځي.

**څې** :- (د+زې) -[پ-فعل] -درومې-ځې-روان ئې.

**څيڅېـرل** :- (دْ+زِيْ+د+زې+ر+لْ) -[اَف:پ (قـاموس) -مـص مـت] ټکـول-وهـل- کوټل.

**څيڅېرلے** :- (د+زي+د+زې+ر+لے) -[اَف:پ (قاموس) -مف-مذ -وا -ج: څيڅيرلي (مؤ: څيڅېرلې)] -وهلے-کوټلے-ټکولے.

**څيڅېرنګ** :- (ځِي+دْ+زې+رَ+نْ+ګْ) -[اَف:پ (قاموس) -حمص] و________ څيڅېرنه.

**څيڅېرنه** :- (ځي+دْ+زې+ر+نه) -[اَف: پ (قاموس) -حمص] -ټکونه-کوټنه.

**څيڅېرونکے** :- (ځي+دْ+زې+رُوْ+نْ کے) -[اَف:پ (قـاموس) اِس-فـا ع-مـذ -وا -ج: څيڅېرونکي (مؤ: څيڅېرونکې)] -وهونکے-ټکوونکے-کُوټونکے.

**څيـر** :- (د+زِي+ر) -[پ-اِس-مـن-(مـؤ-وا: څيـره-ج: څيـرې) -(۱) تېـز نظـرے- باريك بين. (۲) خالص-سوچه. (۳) د ساز تېزنرے اواز-د بم ضد -زير.

**ځېر پښتون** :- (اص)-سوچه پښتون.

**ځېر ځېر کتل** :- (اص)-ځېر ځېر کتل-په يو مخه کتل.

په ارمان د ديدن مرمه پرې سلام دے
چې ځېر ځېر مې د يار مخ وته کاتۀ کا (خوشحال)

**ځېر ځېر کتل** :- (اص)-ځېر ځېر کتل-په غور کتل.

**ځېر کول** :- (اص)-(۱) کتل-لټول-ليدل.

هر آفت چې په درست عمر رادوځار وۀ
چې مې ځير کړ درست زياد ژبې کار وۀ (خوشحال)

(۲) صفا کول-پاکول-اچه کول.

**ځېر کېدل** :- (اص)-په غور کتل- په ژور نظر څۀ ځيز ته کتل-پوره توجه کول.

ښــۀ د زړۀ په فکر ځــير شه دې عالم ته
کوم صاحب دے صاحب شوے بې خدمته (حميد)

**ځېر وئيل** :- (اص-په ځيرو کښې رغول-د سازنرے تار ټنګول.

**ځېرک** :- (دُ+زيِ+رَ+کْ)-[پ-فا: زيرك-اس-مذ-(مؤ: وا: ځيرکه-ج: ځيرکې)]-(۱) هوښيار- تېز نظرے پوهه. (۲) د پښتنو د يو خېل نوم.

**ځېرکتوب** :- (ځيرك+تو+بْ)-[پ-اس-مذ]-ځيرکتيـا-ځيرکوالے-هوښيـاري-پوهه-تېز نظري.

**ځېرکتونــے** :- (ځير+ك+تُــو+نے)-[پ-اس ص-مـذ-وا-ج: ځيرکتــوني (مــؤ: ځيرکتونې)]-په ځير نظر کتونکے-تېر نظرے-پوهه.

**ځېرکتيا** :- (ځيرك-تْ+يا+-[پ-اس-مؤ]- و______ ځيرکتوب.

**ځېرکوالے** :- (ځيرك+وا+لے)-[پ-اس-مذ]-و_____ ځيرکتوب.

**ځېرکــي** :- (د+زيِ+ر+کــيْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ]-هوښيـاري پوهــه-تېزنظري.

**ځېرکے** :- (د+زيِ+ر+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-دوغله-دوه غبرګ.

**ځېرکي کېدل** :- (اَف)-اص-دوغله کېدل-دوه غبرګېدل.

**ځيــرمن** :- (دُ+زيِ+رَ+مَ+نْ)-[پ-اس-مـذ-(مـؤ: وا: ځيرمنـه ج: ځيرمنــې)]-هوښيار-پوهه- ځيرک.

**ځېرمه** :- (دْ+زيِ+رْ+مه)-[پ-اس-مؤ-وا]- زېرمه-توشه.

**ځېرمه وال** :- (دْ+زيِ+مه+وا+لْ)-[اَف-پ-اس-مذ]-سپلائي افسر. د راشن د انتظام ذمه وارغړے.

**ځېرول** :- (دْ+زيِ+ر+و+لْ)-[پ-مص مت]-کتل-ليدل-لټول.

په ځير ځير راته کاتۀ کړې ځيره وې مې
مګر ستا ګمان په ماکېږي چې بل يم (خوشحال)

**ځېرونه** :- (د+زيِ+ر+و+نه)-[پ-حمص]-کتنه-ليدنه-لټونه.

**ځېروونکے** :- (دْ+زيِ+ر+وُ+نْ+کے)-[پ-اس فـاع-مذ-وا-ج: ځيروونکي-(مؤ: ځيروونکې)]-کتونکے-ليدُونکے-لټووُنکے.

**ځېره** :- (د+زيِ+رَه)-[پ-اس-مؤ]-(۱) زيره-يو بُوټے چې د ترکارۍ پخونو په وخت د خوند زياتولو د پاره په کښې اچولے کېږي-(۲) ټاکلې وظيفه.

**ځېر بـدل** :- (د+زيِ+رې+د+لْ)-[پ-مص لا]کتلے کېـدل-ليـدلے کېـدل-لټـولے کېدل.

هر وښتۀ چې په صورت باندې لېدۀ شي
که په ځير شي د شناخت ور به درته وازکه (خوشحال)

**ځېر بدنه** :- (د+زيِ+رې+د+نه)-[پ-حمص]کتلے کېدنه-لېدلے کېدنه-لټولے کېدنه

**ځېر بــدونکے** :- (د+زيِ+رې+دُو+ن+کے)-[پ-مـف-وا-:ج ځيربـدونکي-(مـؤ: ځېربېدونکې)]-کتلے کېدونکے-ليدلے کېدونکے-لټولے کېدونکے.

**ځېزغالي** :- (د+زيِ+ز+غال+لي)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]ګګړي-کروپي- بوګړې.

**ځېړ** :- (د+زيِ+ړْ+يا ګ)-[پ-ص-مذ-(مؤ-وا: ځېړه-ج: ځېړې)]-(۱) ديـژ- ببر. (۲) سخت طبيعته سړے-سخت مزاجه. (۳) سوچه-سپېڅلے.

**ځېړتوب** :- (ځېړ+تو+بْ)-[پ-اِس-مذ]-(۱) ځېړتيا-ځېړوالے-ببروالے-ديژوالے. (۳) سخت مزاجي.

**ځېړتيا** :- (ځېړ+تْ+يا)-[پ-اس-مؤ]-و______ ځېړتوب.

**ځېړګے** :- (ځيــړ+ګے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: ځيــړې-ځيړګيــان]-(۱)سترګې. (۲) يو قسم بُوټے چې په پاڼو کښې ئې ازغي وي.

**ځېړمه** :- (دْ+زيِ+ژيا ګ+مه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: ځېړمې]-د ښوغاره.

**ځېړوالے** :- (ځېړ+وا+لے)-[پ-اس-مذ]-و______ ځېړتوب.

**ځېړول** :- (د+زيِ+ګْ+او+لْ)-[پ-مص مت]-(۱) ببرول-ديژول-(۲) غصه کول-سوختول.

**ځېړونګ** :- (د+زيِ+ك+ژَ+و+نْ+ګ)-[اَف:پ (قاموس)حمص]و____ ځېړونه.

**ځېړونه** :- (دْ+زيِ+ګ يا ژ+و+نه)-[پ-حمص]-(۱) ځېړونګ-ببرونه-ديژونه. (۲) غصه کونه-سوختونه.

**ځېړېــدل** :- (د+زيِ+ګــې يــا ې+د+لْ)-[پ-مــص لا]-(۱) ببرېــدل-ديژېــدل. (۲) غصه کېدل-سوختېدل.

**ځېړېدنګ** :- (د+زيِ+ګې يا ژے+د+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و______ ځېړېدنه.

**ځېړېدنه** :- (دْ+زيِ+ګې يا ژې+د+نه)-[پ-حمص]-(۱) ځېړېدنګ-ځېړېدۀ-ببرېدنه-ديژېدنه. (۲)غصه کېدنه-سوختېدنه.

**ځېړېــدونکے** :- (د+زيِ+ګــې يــا ژې+دو+ن+کــے)-[پ-مــف-مــذ-وا-ج: ځېړېدونکي-(مؤ: ځېړېدونکې)]-(۱) سوختېدونکے-غصه کېدونکے (۲) ببرېدونکے-ديژېدونکے-

ځېړېدونکې)]-کتلے کېدونکے-ليدلے کېدونکے-لټولے کېدونکے.

**ځېړېدۀ** :- (دْ+زيِ+ګې يا ژې+دۀ)-پ-حمص]-و______ ځېړېدنه.

**ځېسـل** :-(د+زيِ+س+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-مـص مت]جېسـل-اوازول-تکليـف وركول.

**ځېګـر** :- (دْ+زيِ+ګ+ر)-[پ-اس-مـذ]-(۱) سـينه-جګـر-(۲) همـت-زغـم-حوصله.

**په ځېګر کښې تنګېدل** :- (اص)-بې حوصلې کېدل-زغم او صبر ختمېدل.

**ځېګــرور** :- (د+زيِ+ګ+ر+و+ر)-[پ-اس ص-مــذ-(مــؤ: وا: ځېګــروره-ج: ځېګرورې)]-(۱) چې ځېګر ئې پلن وي-د لـوے سينې خاوند-غـټ-مضبوط. (۲) بهادر-زړۀ ور-دلاور.

**ځېل** :- (د+زيِ+لْ)-[پ-اس-مذ]-(۱) ضد- ذېل-اړې.

چې د عشق له حقه وينه مې جارباسي
له ناصحه سره ښتے په ځېل ښۀ يم (حميد)

(۲) جهل-ناپوهي-کم عقلي-(۳) قطار.

**ځېل کول** :- (اص)-(۱) ضد کول-اړې کول. (۲) کم عقلي ښکاره کول- ناپوهي ښوول.

**ځېلانځــــه** :- (د+زيِ+لا+ن+د+زه)-[اَف:پ (قـــاموس)-اس مـــؤ-وا-ج: ځېلانځې]-پېروان.

**ځېلي** :- (دْ+زيِ+لي)-[اَف: پ (قاموس)-ص]-(۱) ضدي-اړي مـار-(۲) جاهل-کم عقل-ناپوهه.

**ځېلي کول** :- (اَف)-اِص(۱) ضد کول-اړي کول(۲) ناپوهي او کم عقلي ښکاره کول.

**ځېلي کېدل** :- ((اَف)-اِص-(۱) ضدي کېدل-اړي مارکېدل-(۲) کم عقل کېدل.

**ځېلۍ** :- (د+زيِ+لۍ)-[پ-اِس-مؤ] -(۱) ذېلۍ-جرړه-ولې-(۲) انځيران-يو قسم بيماري چې د څرمنې دننه غنډ غنډ کدوان شان جوړ شي.

**ځېلۍ پرختل** :- (اِص)-د انځيرانو په مرض اخته کېدل.

**ځينار** :- (د+زِي+نا+ر)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: ځينارونه] -زنار-د سپڼسو هغه مزے چې هندوان ئې په مذهبي ډول غاړې ته اچوي.

**ځينګر** :- (ر+زِي+ن+ګ+ر)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-(مؤ-وا-ځينګره-ج: ځينګرې)] -زينګر ۰ ګڼه ګوڼه.

**ځينه** :- (دُ+زي+نه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ځينې] -زينه-پوړۍ-پارځنګ.

**ځيني** :- (د+زِي+نِې)-[پ-ص] -(۱) ځينې-بعضې-ځنې.(۲) ورځخه-ورته-ترې نه.

◈◈◈

# چ

**چ**:- (چې)-[پ-حرف-مؤ-وا-ج: چې ګانې]د پښتو الف بې پې د پټۍ نهم توکی.

**چا** :- (چا)-[پ-ضمیر]- د استفهام ضمیر چې په فاعل حالت کښې د ماضي متعدي سره وئیلی شي- د سوال یا تپوس کلمه.

راته مـــه وایه په تاګو
چې په تانۀ ګو په چاګو (خوشحال)

**چابـاره** :- (چا+بـا+رهٔ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مؤ-وا-ج: چابارې]- چالاکه- زړۀ وره- پوهه- هوښیاره او بهادره ښځه.

**چــابړۍ** :- (چـا+بُ+ړئ)-[پ-اس-مـؤ]- د تلـې پـړك- د تلـې یـو طـرف. (۲) ورکوټې شکرۍ.

**چابړۍ لګول** :- (اِص- پـه لاره یـا کوځـه، میلـه کښـې پـه شـکرۍ کښـې لـږ ډېـر سامان د خرڅولو دپاره کښېښول.

**چابړۍ والا** :- (چابړۍ+وا+لا)-[پ-اس ص-مذ]- د چابړۍ کـار کـوونکی چـابړۍ لګوونکی- په لارو کوڅو او مېلو کښې سامان خرڅوونکی

**چابک** :- (چا+پ+كْ)-[پ-اس-مـذ (مؤ-وا :چابکـه-ج: چـابکې)](۱) چـالاك- تیـز- چست- تُند. (۲) متروکه- تراټ- بېښت.

**چابک تاوول** :- (اِص- چابك چُورلول- بېښت تاوول.

**چابک تلل** :- (اِص- تېز تلل- په بیړه تلل- زرتلل.

**چابک چابک تلل** :- (اِص- تېز تېزتلل- په بیړه بیړه تلل- زر زرتلل.

**چابک چُورلول** :- (اِص- و_______ تاوول.

**چابک راتلل** :- (اِص- زر راتلل- تېز راتلل- په بیړه راتلل.

**چابک کول** :- (اِص- تېزول- چُستول- تُندول- چابکول- جلتول.

**چابک کېدل** :- (اِص- تېزېدل- چُستېدل- جلتېدل- چابکېدل.

**چابک ورکول** :- (اِص- پـه تـراټ وهـل- متروکـه ور خلاصـول- پـه بېښت وهـل- پـه چابك وهل.

**چابکتوب** :- (چابـك+تو+بْ)-[پ-اس-مـذ]- چابکتیـا- چـابکي- تېـزي- تنـدي- چُستي- چابك والی.

**چابکتیا** :- (چابك+تْ+یا)-[پ-اس-مؤ-و_____ چابکتوب.

**چابکول** :- (چا+ب+ك+و+لْ)-[پ-مص مت]- تندول- چابك كول- تېزول

**چابکونه** :- (چا+ب+ك+و+نه)-[پ-حمص]- تندونه- تېزونه- جلتونه.

**چـابکوونکی** :- (چـا+ب+ك+وُ+نْ+کی)-[پ-اس فـاع-مـذ-وا-ج: چـابکوونکي- (مؤ: چابکوونکې]- چابك کوونکی- تندوونکی.

**چــابکۍ** :- (چـا+بُ+کئ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ]- یـو قسـم چیـنجی چـې سُورنګ لري او وېښتۀ پرې باندې وي.

**چابکي** :- (چا+ب+کِي)-[پ-اس-مؤ]- و______ چابکتوب.

**چابکېدل** :- (چا+ب+کې+د+لْ)-[پ-مص لا]- چابك کېدل- تندېدل- تېزېدل.

**چابکېدنه** :- (چا+پ+کې+د+نه)-[پ-حمص]- تندېدنه- تېزېدنه.

**چابکېدُونکی** :- (چا+ب+کې+دُو+نْ+کی)-[پ-مف-مذ-وا-ج: چابېدونکي (مؤ: چابکېدونکې)]- چابك کېدُونکی- تېزېدونکی تندېدونکی.

**چابي** :- (چا+بِيْ)-[ه-اس-مؤ-وا-ج: چابیانې]- (۱) کُنجي- نُوسی- پلې پـار(۲) د ګړۍ یوه پرزه چې د ګړۍ مشین چلوي.

**چابي تـاوول** :- (اِص- (۱) کُنجي پـه تالـه کښـې ګرځـول- چـابۍ پـه مـدد تالـه خلاصول. (۲) ګړۍ ته چابي ورکول.

**چابي لګول** :- (اِص- کنجي کول- چرنده لګول.

**چـابي ورکـول** :- (اِص- (۱) چـابي تـاوول. (۲) څـوك د څـۀ کـار دپـاره پـارول او تېزول.

**چــاپ** :- (چـا+پ)-[پ-اس-مـذ]- (۱) چاپـه- طبـع شـوی. (۲) ټاپـه- مُهـر. (۳) نخښه.

**چاپ کول** :- (اِص- طبع کول- چاپول.

**چاپ کېدل** :- (اِص- طبع کېدل- چاپېدل.

**چاپانه** :- (چا+پا+نَه)-[پ (وز)- اس-مؤ-وا]- چُوغه- شُوکه.

**چاپت** :- (چا+پ+تْ)-[پ-اس-مذ]- (۱) د قرض پور سودا (۲) یاداشت.

**چاپت کول** :- (اِص- د دوکاندار نه په پور سودا اخستل.

**چاپت ورکول** :- (اِص- د دوکاندار په پور سودا ورکول.

**چاپړاخ** :- (چاپ+ړا+خْ)-[پ-ص-مذ (مؤ:چاپړاخه)]- پلن- فراخ- ارت بیرت.

**چـاپړاخ پرېوتـل** :- (اِص- ارت بیـرت پرېوتـل- ویـړ واز پرېوتـل- بُـوني بـوني پرېوتل.

**چاپړاخـه** :- (چا+پ+ړا+خـه)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ]- چپلاخـه- چاپلاخـه- څپېړه- تتوره- چاپېړه.

**چاپکـه** :- (چا+پ+کَـه)-[اَف:پ (قـاموس) اس-مـؤ-وا-ج: چـاپکې]- څپیاکـه- سُوپه- د ډنګر پلن او غونډ برابر کړی غوشایه-تاپي.

**چاپلاخه** :- (چا+پ+لا+خه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- و______ چاپړاخه

**چـاپلوس** :- (چـا+پْ+لُو+س)-[فـا-اس-مـذ-مـؤ-وا-چاپلوسـه-ج:چاپلوسـې)]- خوشامدګر- خوشامدي.

**چاپلوسي** :- (چا+پ+لُوْ+سِي)-[فا-اس-مؤ]- خوشامدګري- خوشامنده.

**چـاپ والا** :- (چـاپ+وا+لا)-[پ-اس ص-مـذ]- (۱) چـاپوونکی- چـاپکوونکی- د چاپ کارکوونکی- طبع کوونکی. (۲) ټاپه لګوونکی.

**چاپول** :- (چا+پ+و+لْ)-[پ-مص-مت]- چاپ کول- طبع کول

**چاپونه** :- (چا+پ+و+نه)-[پ-حمص]- چاپ کونه- طبع کونه.

**چاپوونکے** :- (چا+پ+وُوْ+نْ+کے)-[اِپ-اس-فاع-مذ-وا-ج: چاپوونکي (مؤ: چاپوونکې)]- چاپ کوونکے- طبع کوونکے.

**چاپه** :- (چا+پَه)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: چاپې]- (۱) چاپ. (۲) غټ مهر. (۳) ټاپه-نقش. (۴) ځپېك- دځلورو ګوتو هومره. (۵) د غنو پولی. (۶) ناځاپي حمله.

**چاپه لګول** :- (چاپه وهل- مهر لګلو- نخښه پرې کول.

**چاپه وهل** :- (اِص- (۱) و ـــــــ چاپه لګول. (۲) ناځاپي حمله کول.

**چاپي** :- (چا+پِيْ)-[اِپ-اس-مؤ]- (۱) چاپ شوے. (۲) نخښه شوے. نشان پرے لګېدلے. (۳) په وجود زور کول- کنبې منډنه.

**چاپي کول** :- (اِص- په بدن زور کول- کنبې منډل.

**چاپي کېدل** :- (اِص- په بدن زور کېدل- کنبې منډل کېدل.

**چاپېدار** :- (چا+پې+دا+رْ)-[اِپ-تر-ص-مذ]- چې د چاپ نخښې په کنبې وي- ټاپه شوے.

پېشواز ئې چاپېدار دے زېور پر ګُل انبار دے
ټول ځان کا ستوري ستوري سر تا قدم له نازه (علي خان)

**چاپېدل** :- (چا+پې+د+لْ)-[اِپ-مص لا]- چاپ کېدل- طبع کېدل.

**چاپېدنه** :- (چا+پې+د+نه)-[اِپ-حمص]- چاپېدۀ- چاپ کېدنه- طبع کېدنه.

**چاپېدونکے** :- (چا+پې+دُوْ+نْ+کے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چاپېدونکي (مؤ: چاپېدونکې)]- چاپ کېدونکے- طمع کېدونکے.

**چاپېدۀ** :- (چا+پې+دۀ)-[اِپ-حمص]- و ـــــ چاپېدنه.

**چاپېر** :- (چا+پې+ر)-[اِپ-ص-مذ (مؤ-وا: چاپېره-ج: چاپېرې)]- راتاؤ ځرخومه-ګرد- چاپېره.

**چاپېر کول** :- (اِص- ګرد را ځرخول- ځرخومه- راځرخول- را تاوول- ګېرول.

**چاپېر کېدل** :- (اِص- ګرد را ځرخېدل- را تاوېدل.

دا د خـط دے که هاله ده
که سبزه تر ګل چاپېره شوه (علي خان)

**چاپېرچل** :- (چاپېر+چَ+لْ)-[اِپ-اس-مذ]- ګردش- د دنیا ځرخ.

**چاپېرسیند** :- (چاپېر+سِيْ+ن+دْ)-[اِپ-اس-مذ]- بې پایانه سمندر- کاړي درياب.

**چاپېرول** :- (چا+پې+ر+و+لْ)-[اِپ-مص مت]- چاپېر کول- ګرد راځرخول-ګېرول.

**چاپېرونه** :- (چا+پې+و+نه)-[اِپ-حمص]- چاپېر کونه- ګرد راځرخونه- ګېرونه.

**چاپېروونکے** :- (چا+پې+ر+وُوْ+نْ+کے)-[اِپ-اس فاع-مذ-وا-ج: چاپېروونکي-(مؤ: چاپېروونکې)]- ګرد راځرخوُونکے- ګېروُونکے.

**چاپېره** :- (چا+پې+رَه)-[اِپ-ص]- و ـــــــ چاپېر.

دا خـوځـۀ وريځ نۀ وه چې چاپېره په جهان شوه
تـلـلے تـر اسمـانـه دے بخار د خوږو زړونو (علي خان)

**چاپېرے** :- (چا+پې+رَے)-[اَف:پ (قاموس) اس-مذ-وا-ج: چاپېري]- پرکار.

**چاپېرېدل** :- (چا+پې+رې+د+لْ)-[اِپ-مص]- راځرخېدل- ګېرول.

**چاپېرېدنه** :- (چا+پې+رې+د+نه)-[اِپ-حمص]- و ـــــــ چاپېرېدنه.

**چاپېړه** :- (چا+پې+ړه)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: چاپېړې]- ځپېړه.

**چاټ** :- (چا+ټ)-[اَف:پ (قاموس)-[اس-مذ]- عادت.

**چـاټ** :- (چـا+ټ)-[ه-اس-مـذ]- د مختلفـو مېوونـه جـوړه کـړې ترځکونـه شاتتې ملغوبه.

**چاټی** :- (چا+ټیٔ)-[اِپ-اس-وا-ج: چاټیانې]- ماټی- مټ.

**چاجوش** :- (چا+جو+شْ)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: چاجوشونه]- چاېجوش- هغه لوښے چې چائې په کښې پخولے شي- چائېجوش.

**چاچا** :- (چا+چا)-[اِپ-ه-چچا-اس-مذ-وا-ج: چاچګان (مؤ-وا: چاچي)]- (۱) ترۀ- د پلار ورور. (۲) مشر سړي ته د ادب نوم.

**چاچوغاړه** :- (چا+چو+غا+ړه)-[اَف: پ (قاموس)-اس-مؤ]- په وړوکوالي کښې د ماشوم د چا په اورمېږ سورلي.

**چاچي** :- (چا+چي)-[اِپ-اس-مؤ]- د ترۀ ښځه- تنديار.

**چاخ** :- (چا+خْ)-[اِپ-ص-مذ-مؤ-وا: چاخه-ج: چاخې]تېز- تُند- بيړندے- ګړندے.

**چاخ تلل** :- (اِص- تېز تلل- ګړندے ګړندے تلل- بيړندے تلل.

**چاخ ګرځېدل** :- (اِص- په بيړه ګرځېدل- ګړندے ګرځېدل- تېزتېز شورېدل.

**چاخول** :- (چا+خَ+و+لْ)-[اِپ-مص-مت]تندول- تېزول- په بيړه كول- ګړندے كول.

**چاخوونکے** :- (چا+خَ+وُوْ+نْ+کے)-[اِپ-اس فاع-مذ-وا-ج: چاخوونکي (مؤ: چاخوونکې)]- تېزوونکے- تندوُونکے-ګړندے کوُونکے.

**چاخېدل** :- (چا+خې+د+لْ)-[اِپ-مص لا]- تېزېدل- تُند کېدل- ګړندے کېدل.

**چاخېدُونکے** :- (چا+خې+دُوْ+نْ+کے)-[اِپ-فاع-مذ-وا-ج:]- چاخېدونکي- مؤ: چاخېدونکې)]- تېزېدونکے- تندېدونکے- ګړندے کېدونکے.

**چادي** :- (چا+دِيْ)-[اَف:پ (قاموس)-ص-مذ-وا-ج: چاديان]- ساده سړے- ساده بوده- بودلے.

**چادي توب** :- (چادي+تو+بْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- ساده توب

**چادي چکمار** :- (چادي+چَ+كْ+ما+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس ص- مذ (مؤ-وا: چادي چمکاره-ج: چادي چکمارې)] ډېر ساده- بېحده زيات کم عقل- د عقل دښمن- له عقله خلاص.

**چاړې** :- (چا+ړيْ)-[اِپ (ب،خ)-[اس-مؤ]لنګتې- لينګتـه- انډې- پښـه اړمونه-چاړې.

**چاړې اچول** :- (ب،خ)-اِص- لنګتې اچول- لينګته اچول- انډې وهل- پښه اړمول.

**چاټو** :- (چا+ټُوْ)-[اِپ (شن)-اس-ص-مذ]- چټ.

**چادر** :- (چا+دَ+رْ)-[فا-اس-مذ-وا-ج: چادرُونه]- ځادر- پټکے- دواړ- پړونے.

**چار** :- (چا+رْ)-[اِپ-اس-مذ-وا]- (۱) کار چاره. (۲)- (تجويز)

چې لـه عشقه بله چار ګڼې افزونه
تـر دا بـلـه انـد ېښنه نشته زبونه (خوشحال)

**چار کول** :- (اِص- کار کول.

**چار کېدل** :- (اِص- کار کېدل.

**چاراندام** :- (چار+اَ+نْ+دا+مْ)-[اِپ-اس-مذ]- اودس.

**چاراندام کول** :- (اِص- اودس کول.

**چارباغ** :- (چا+ر+با+غ)-[اس معرفه- مذ]- په خيبر ايجنسۍ کښې د لواړګي نه وړاندې د يوځاے نوم.

**چاربېته** :- (چا+ر+بې+تَه)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: چاربېتې]- هغه شعر چې په ځلورمه مصرعه سرته ګډېږي. سندر غاړي ئې په تېز اهنګ وائي. او په کښې تاريخي او روماني واقعات په ښکلي ډول بيان شوي وي.

**چارپا** :- (چا+رْ+پا)-[فا-اس-مذ-وا]- چارپائي- ښلور پښې- ځناور.

ادمیت له ادمیانو خدا ے واخست

تـر دوه پـایـو نه بهتر وینم چارپا (خوشحال)

**چارپائے** :- (چا+رْ+پا+ئې)-[فا-اس-مذ-وا-ج: چارپیان]- و ـــــ چارپا.

خوي د چارپایانو کړې جُثه دې د سړي ده

شین بوټې چې وینې له ګړنګه پسې رغړې (حافظ پوري)

**چارپېره** :- (چا+رْ+پې+رَه)-[پ-فا: چهار پهره-اس-مؤ-وا-ج: چارپېرې]- د شپې نوکري- دا یوه فوځي اصطلاح ده.

**چارج** :- (چا+رَ+جْ)-[اَنګ:اس-مذ] (۱) قبضه- ملکیت- حوالګي (۲) الزام (۳) قیمت.

**چارج اخستل** :- (اص- قبضه اخستل- ملکیت کښې راوستل- کار شروع کول.

**چارج کول** :- (اص- په چا ځۂ الزام لګول. (۲) مقرر رقم ترې اخستل. (۳) د ګاډي بټرۍ تازه کېدل.

**چارج لګول** :- (اص- الزام لګول.

**چارج ورکول** :- (اص- قبضه ورکول- کار ورسپارل.

**چارځے** :- (چار+زے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- کارخانه.

**چارپېر** :- (چا+رْ+چا+پې+رْ)-[پ-ص-مذ]- ګېرچاپېر.

**چارچوبۍ** :- (چا+رْ+چو+بۍ)-[پ-اس-مؤ]- چارچوبي- چرچوبی- غسلخانه.

چارچوبۍ ته ئې ولاړ کړ

بادشاهان له تخت و تاج (حمید)

**چارخانه** :- (چا+رْ+خا+نَه)-[فا-اس-مؤ-وا-ج: چارخانې]-[الکیرداره- کپړه چې په کښې ښلور ښلور خانې جوړېږي.

**چارخول** :- (چار+خو+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- چرخول- چارخولک- چارغول- چارغولک- کرکره- پرپره- د چرک چوتي- د چرګ د سرخوندے.

**چارخولک** :- (چار+خْ+و+لَ+کْ)-[اَف:پ(قاموس) اس-مذ]- و ـــــ چارخول.

**چاردیواري** :- (چا+رْ+دي+وا+رِيْ)-[فا-اس-مؤ]- د پردې دېوال.

**چاړے** :- (چا+رْ+ړے)-[پ (سو)اس-مذ]- یو قسم ټوکرۍ یا شکرۍ.

**چارسُو** :- (چار+سُوْ)-[پ-اس-مذ]- چوګله.

**چارشنبه** :- (چا+رْ+شَ+نْ+بَه)-[فا-اس-مؤ]- بُدهـ- پنځم- شروع.

بیـا ورسـتې چارشـنبه د هـرې میاشـتې

نحسـه ورځ ده وائـي ښـۂ خوشـحال ختـك

**چارغول** :- (چار+غو+لْ)-[پ-اس-مذ]- و ـــــ چارخول.

**چارغولک** :- (چار+غو+لَ+کْ)-[پ-اس-مذ- و ـــــ چارخول.

**چارک** :- (چا+رَ+کْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ] پاؤ- د ګز یا د سېر ښلورمه حصه.

**چارکے** :- (چا+ر+کَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چارکي- چارکیان]- پاؤ- د پاؤ کانړے- ښلور چټاکے.

**چارګر** :- (چا+رْ+ک+ر)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ- (مؤ-وا: چارګره-ج: چارګرې)]- کار کوُونکے- مزدور.

**چارګل** :- (چا+رْ+ګُ+لْ)-[پ-اس-مذ-وا-ج: چارګلونه]- ټیک- د ښځو د پوزې یو کالے.

**چارګلے** :-(چا+ر+ګُ+لَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]یو بـوټے چې زیړ ګلونه نیسي.

**چارګنده** :- (چا+رْ+ګ+نْ+ده)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: چارګندې]-

چارند- د تمبو یا کېږدۍ نه ګېرچاپېر کنستلے شوے لښتے- چرۍ- چارۍ.

**چارګے** :- (چا+رْ+ګَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- د سوزولو یو قسم لرګے.

**چارلیار** :- (چا+رْ+لْ+یا+رْ)-[پ (ب،خ)-اس-مذ]- کار روزګار.

**چارم** :- (چا+رَ+مْ)-[پ-فا: چهارم-اس عدد-مذ]- ښلور.

په چارم اسمان به ناست لکه عیسیٰ وم

کـه اسـمـان ته الـواتـۂ شوې په خبرو (خوشحال)

**چارمغز** :- (چا+رْ+م+غ+زْ)-[فا-اس-مذ]- ښلورقسمه مغز چې طبیبان ئې اکثر په دوایانو کښې استعمالوي.

**چارمېخ** :- (چا+رْ+مې+خْ)-[اَف:پ (قاموس)- اس-مذ]- د ځناورو یو خاص مرض چې وانبۂ ئې په کښې خوري.

**چارناچار** :- (چا+رْ+نا+چا+رْ)-[پ-ص-مذ]- کام ناکام- خامخا- ارومرو- په مجبورۍ- په بې وسۍ.

**چارند** :- (چا+ر+نْ+دْ)-[اَف:پ (قاموس) اس مذ]- و ـــــ چارګنده.

**چارنـدُوکے** :- (چـا+رْ+نْ+دُوْ+کے)-[پ-اس فـاع-مـذ-وا-ج: چارنـدُونکي (مـؤ: چارندوکې)]- کارویستونکے- کار وانوونکے- کاریګر- چارو.

**چارنے** :- (چا+رَ+نے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چارني (مؤ: چارنۍ)]- کسب ګر- کسبه.

**چارُو** :- (چا+رُو)-[اَف:پ (قاموس) اس]- و ـــــ چارندُوکے.

**چاروغه** :- (چا+رو+غه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: چاروغې]- د کچې څرمنې یو قسم پېزار چې مخ ئې د لمڅي نه جوړ وي.

**چاره** :- (چا+رَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: چارې]- (۱) چار- کار.

مونږه بېچاره چې څوك په نبکه چاره یاد کا

خـدا ے چـار غـالـبـه څو چـنـده پـه سیال لره (علي خان)

**چاره کول** :- (اص- (۱) کار کول- چار کول. (۲) علاج کول. (۳) تدبیر کول.

**چارې کول** :- (اص- فساد کول- ملنډې کول.

جدائي زما په زړۂ کا هسې چارې

لکـه باز ئې په تارو یا په دراج کا (خوشحال)

**چاره** :- (چا+رَه)-[پ (ګن)-اس-مؤ-وا-ج: چارې]- منډه- زغل- تاخ.

**چاره کول** :- (ګن)-اص- منډه کول- زغلېدل- تاخ کول.

**چـارۍ** :- (چـا+رۍ)-[اَف: پ (قـاموس)-اس-مـؤچ- (۱) چارګنـده- چارنـه. (۲) بېلچه- ایم- یُوم.

مناسب دي چې وروستے خبرئې واخلې

نن زما احمد دین قبر ته چارۍ وړي

(۳) د اُوږې اړوکے. (۴) د ماشـومانو د لوبـو یـو ورکـوټې کـانړے.

**چارې چپر** :- (چا+رې+پ+ر)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- د ماشومانو یوه د سورلۍ لوبه.

**چاړ** :- (چا+ړْ)-[اف:پ (قاموس)-اس-مذ]- د څمیار هغه کالبوت چې د پېزار جوړولو په وخت ئې استعمالوي.

**چاړ** :- (چا+ړْ)-[پ (ګن) اس-مذ-وا-ج: چاړونه]-د برستن یا تولائي استر- ختله.

**چاړ خېژل** :- (ګن) اص- په برستن یا تولائي استر یا ختله خېژول.

**چاړا** :- (چا+ړا)-[پ-ص]- نیم ژبے- ترټړے- ګنګوړے.

**چاړاتوب** :- (چاړا+تو+بْ)-[پ-اس-مذ]- نیم ژبے والے- ترټړیتوب.

**چاړۀ** :- (چا+ړۀ)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: چړې]- د چاقو نه لوے هغه تیرۀ مخے اوزار چې خلق ئې د ځان ساتلو یا د غوښې پرېکولو دپاره استعمالوي.
متل: که چاړۀ د سرو شي څوك ئې په خېټه نۀ منډي.

**چاړۀ پڅېدل** :- (اِص- (۱) د چړې دار تېرۀ نۀ پاتې کېدل. (۲) په څۀ کار کښې ناکامه کېدل.

**چاړۀ پرغاړه ور اېښول** :- (اِص- (۱) د حلالولو دپاره د څۀ څیز په غاړه چاړۀ راکښل. (۲) په چا ظلم کول. (۳) د چا نه په زور څه څیز اخستل- چاړۀ په مرۍ اېښودل.

**چاړۀ په مرۍ اېښودل** :- (اِص- و__________ چاړۀ پرغاړه ور اېښول.

**چاړۀ غاړه کېدل** :- (اِص- بې وسه کېدل- ناچاره کېدل.

**چاړۀ کول** :- (اِص- (۱) په لوبه کښې د چانه څۀ څیز ګټل. (۲) په جوارۍ کښې څۀ ګټل. (۳) په سودا کښې زیات تاوانول.

**چاړۀ ورته تېره کول** :- (اِص- چاړۀ تېرول- (۲) د څۀ کار دپاره تیاري کول. (۳) چاړۀ ورته کښېښول.

**چاړۀ ورته کښېښول** :- (اِص- و__________ چاړه ورته تېرۀ کول.

**په اوبو کښې چاړۀ لیدل** :- (اِص- (۱) انجام ښکاره کېدل- د څۀ څیز په نتیجه رسېدل. (۲) خپل مرګ په خپله لیدل.

**په چاړۀ حلالول** :- (اِص- (۱) په چاړۀ د چا مرۍ پرېکول. (۲) چاسره په سودا کښې ډېره تګي کول. (۳) په چا ډېر ظلم کول.

**تـر چـاړۀ لانـدې سـاه اچـول** :- (اِص- (۱) د چړې لاندې د ژوند اخري سلګۍ اخستل. (۲) په ډېر تکلیف او عذاب کښې لږ ساه صورت کېدل.

**چاړۀ** :- (چا+ړۀ)-[اِپ (وز)-اس-مؤ]- طرازه- پَره.

**چاړۀ ګر** :- (چا+ړۀ+ګ+ر)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- چاړۀ جوړوُونکے.

**چاشے** :- (چا+شے)-[اِپ (خ)-اس-مذ]- څاشے- کرکړے- اتېرن- ډېرن.

**چاغ** :- (چا+غ)-[اِپ-اس-مذ-مؤ-وا-چاغه-ج: چاغې]- (۱) تیار- مضبوط- څورب. (۲) چُست- تېز. (۳) شور- زوږ.

زړۀ بـه د کښـلیو عـاقل فراغ کا
فراق را درومي فتور به په چاغ کا (پیرمحمد کاکړ)

**چاغتوب** :- (چاغ+تو+ب)-[اِپ-اس-مذ]- (۱) چاغتیا- چاغوالے- چاغښت- څوروالے. (۲) چستي- تېزي.

**چاغتیا** :- (چاغ+تْ+یا)-[اِپ-اس-مؤ]- و__________ چاغتوب.

**چاغښت** :- (چا+غ+ښ+ت یا غ+ښ+ت)-[اَف:پ (قاموس) اس-مذ]- و__چاغتوب.

**چاغول** :- (چا+غ+و+لْ)-[اِپ-مص-مت]- څربول- غټول.

**چاغونګ** :- (چا+غ+وَ+نْ+ګ)-[اَف:پ (قاموس) حمص]- و__ چاغونه.

**چاغونه** :- (چا+غ+و+نه)-[اِپ-حمص]- چاغونګ- څربونه- غټونه.

**چغوونکے** :- (چا+غ+وُو+نْ+کے)-[اِپ-اس فاع-مذ-وا-ج: چاغوُونکي (مؤ: چاغوونکې)]- څربوُونکے- غټووُنکے.

**چاغي** :- (چا+غيِ)-[اِپ-اس معرف]- په بلوچستان کښې د یو ځاے نوم.

**چاغېدل** :- (چا+غې+د+لْ)-[اِپ مص لا]- څربېدل- غټېدل.

**چاغېدنګ** :- (چا+غې+دَ+نْ+ګ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- و__ چاغېدنه.

**چاغېدنـه** :- (چا+غې+د+نـه)-[اِپ-حمص]چاغېـدنګ- چاغېـدۀ- څربېدنـه- غټېدنه.

**چاغېـدُونکے** :- (چـا+غې+دُو+نْ+کے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چاغېـدونکي (مؤ: چاغېدونکې)]- څربېدونکے- غټېدونکے.

**چاغېدۀ** :- (چا+غې+دۀ)-[اِپ-حمص]- چاغېدنه.

**چاق** :- (چا+قْ)-[اِپ (سو)-ص-مذ]- چاخ- چابك- تېز.

**چاقوُ** :- (چا+قُوْ)-[اَفا-اس-مذ-وا-ج: چاقوان]- ورکوټے تېرۀ مخے څیز چې پنسل قلم پرې جوړولے شي- او د ورکوټي څیز د پرېکول یا صفا کولو دپاره ئې خلق په جېب کښې ګرځوي- چاکُو.

**چـاک** :- (چـا+کْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: چاکونـه]درز- څیـر- چـاؤد- سپړدے.

لږ وئیل ډېر ئې کول په خاموشي کښې
د غنــچې غُنډې خولهٔ ډکه سینه چاك (خوشحال)

**چاک** :- (چا+کْ)-[انګ:اس-مذ-وا-ج: چاکونه]- د چونې نه جوړ د ګوټې هومره غټ پنسل شان چې په توره تخته لیك پرېکولے شي.

**چاکلېټ** :- (چـا+کْ+لې+ټْ)-[اَنګ:اس-مذ-وا]- یـو قسم خواږۀ چې زنانه او ماشومان ئې زیات خوښوي.

**چاکو** :- (چا+کُوْ)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: چاکوان]- و______ چاقُوْ.

**چاکي** :- (چا+کيِ)-[اَف:پ (قاموس) ص]- درزي.

**چاګل** :- (چا+ګ+لْ)-[اِپ-ه: چهاګل-اس-مذ-وا-ج: چاګلونه]- د اوبو ورکوټے ګوډے یا مشك- د څرمنې یا کرمچ پټکے- چاګله.

**چاګله** :- (چا+ګَ+له)-[اَف:پ (قاموس)-اسمؤ]- و______ چاګل.

**چال** :- (چا+لْ)-[ه-اس-مذ]- (۱) فرېب- دام- مکر- دوکه.

د هُـنر د چـابـك سـوار لاڅه کـــه مـاته
چې اسمان نیلي راواخلي د خپل چال چل (علي خان)

(۲) تګ- رفتار.

د زمــري ماره خوړلے شغال نۀ شي
سویه تلې د شرمخانو په چال نۀ ئې (احمدین طالب)

(۳) طرز- طریقه(۴) عادت. (۵) د اس رفتار(۶) د شطرنج د لوبې مُهرې خوځول.

**چـالاک** :- (چـا+لا+کْ)-[اَفـا-ص-مـذ (مؤ-وا: چالاکه-ج: چـالاکې)]- (۱) مکـار- دوکه باز- ټګ- چلولي. (۲) تېزي- تُندي- چُستي- چاخوالے. (۳) پوهه- هوښیارتوب.

**چـالاکي ښـکاره کـول** :- (اِص- (۱) ټګي کول. (۲) ځان هوښیار هوښیار کول- چالاکي کول.

**چالاکي کول** :- (اِص- و__________ چالاکي ښکاره کول.

**چالان** :- (چـا+لا+نْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-[مؤ-وا: چالانه-ج: چـالانې)]- جاري- روان- چالو.

**چـالان** :- (چـا+لا+نْ)-[ه-اس-مـذ-وا-ج: چالانونـه]- (۱) بیـجك- د سـامان د رقـم رسید. (۲) راهداري. (۳) دتحقیقات نه پس عدالت ته د ملزم روانګي.

**چالان کول** :- (د څۀ جرم په وجه څوك عدالت ته را وراندې کول- چالانول.

**چالان کېدل** :- (اِص- د څۀ جرم په وجه د چا عدالت ته وراندې کېدل.

**چالانول** :- (چا+لا+ن+و+لْ)-[اِپ-مص مت]- چالان کول.

**چالانونه** :- (چا+لا+ن+و+نه)-[اِپ-حمص]- چالان کونه- د څۀ جرم په وجه عدالت ته وراندې کونه.

**چالانوُونکے** :- (چـا+لا+نْ+وُو+نْ+کے)-[اِپ-اس فـاع-مذ-وا-ج: چـالانوونکي (مؤ: چـالانووُکې)]- چـالان کـوونکے- هغـه عهـده دار چې څوك د جـرم پـه وجـه عدالت ته وراندې کوي.

**چالانېدل** :- (چا+لا+نې+د+لْ)-[اِپ-مص لا]- چالان کېدل- د څهٔ جرم په وجه عدالت ته وړاندې کول.

**چالانېدنه** :- (چا+لا+نې+د+نه)-[اِپ-حمص]- چالانېدهٔ- چالان کېدنه- د څهٔ جرم په وجه عدالت ته وړاندې کېدنه.

**چالانېدُونکے** :- (چا+لا+نې+دُو+نْ+کے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چالانېدُونکي (مؤ: چالانېدُونکې)]- هغه څوک چې د څهٔ جرم په وجه د تحقيق نه پس عدالت ته وړاندې کېږي- چالان کېدونکے.

**چالانېدهٔ** :- (چا+لا+نې+دهٔ)-[اِپ-حمص]- و_____ چالانېدنه.

**چالباز** :- (چا+لْ+بـا+زْ)-[اَفـا-اس-مـذ-وا-ج: چالبـازان) مـؤ-وا: چالبـازه-ج: چالبازې)]- چالاکي- ټګي- چلول- چالچوري- غداري.

**چالبازي کول** :- (اِص- چالاکي کول- ټګي کول- چلول کول- چالچوي کول- غداري کول.

**چالچودي** :- (چا+لْ+چو+دي)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- و____ چالبازي.

**چالن** :- (چا+لْ+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- چالان- بیچك- راهداري.

**چالو** :- (چا+لُوْ)-[اِپ-اس]- روان- چلند- جاري.

**چالو کول** :- (اِص- روانول- جاري کول- شروع کول.

**چالو کېدل** :- (اِص- روانېدل- جاري کېدل- شروع کېدل.

**چاله** :- (چا+له)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- غټه اسپه.

**چاله** :- (چا+لَه)-[اِپ (ظفر)-اس-مؤ]- (۱) طريقه- قاعده- اصول- لار- رفتار- کردار- قانون.

**په خپله چاله تلل** :- (ظفر) اِص- په خپله طريقه تلل- په خپل اصول پاتې کېدل.

**چامپه** :- (چا+مْ+پَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- څپه- چپه- موج.

**چانبېل** :- (چا+نْ+بې+لْ)-[اِپ-ه: جنبېلي-اس-مـذ]- يو قسم خوشبويه ګـل چې رنګ ئې زېړ او سپين دي.

کـه چـانبېل ګلاب په خوې په بوي کنبې ښهٔ وو
غـم ئې لاشـه ربز مربز کړهٔ په سرو پل زړهٔ (عليخان)

**چانچور** :- (چا+نْ+چو+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]کوني- د ماشومانو يوه لوبه.

**چانـدماري** :- (چا+نْ+د+مـا+رِيْ)-[ه-اس-مؤ]چارمـاري- د نخښـې ويشتنه- نشانه بازي.

**چاندماري کـول** :-(اِص- (۱) نخښـه ويشـتل- نشـانه بـازي کـول. (۲) څوك پـه ټوپکو سُورے سُورے کول- په چا د ټوپکو بارچلول.

**چاندي** :- (چا+نْ+دي)-[ه-اس-مؤ]- سپين زر.

**چانډو** :- (چا+نْ+ډُوْ)-[ه-اس-مذ]- يو قسم نشه چې افيم په اوبو کنبې پاخهٔ کړے شي او په چلهم کنبې څښلے شي.

**چانـړه** :- (چـا+نْ+ړه)-[اَف:پ (قـاموس) اس-مـؤ]- (۱) تـرازه- پـره. (۲) يوې اندازې مطابق ګټه يا مال چې په لاس راځي.

**چاڼ** :- (چا+نْ+ړْ)-[اِپ-اس-مـذ-وا-ج: چاڼونـه](۱) چـاڼ شـوے- صفا شـوے. (۲)غلبېل. (۳) تلاش- غوښته.

**چاڼ کول** :- (اِص- (۱) صفا کول- چاڼول. (۲) تلاش کول- لټول.

**چاڼ کېدل** :- (اِص- (۱) صفا کېدل- چاڼېدل. (۲) تلاش کېدل- لټون کېدل.

**چاڼول** :- (چا+نْ+ړ+و+لْ)-[اِپ-مص مت]- چاڼ کول.

**چاڼونه** :- (چا+نْ+ړ+و+نه)-[اِپ-حمص]- (۱) چاڼ کونه- صفا کونه. (۲) تلاش کونه- لټونه.

**چاڼوُونکے** :- (چا+نْ+ړ+وُو+نْ+کے)-[اِپ-اس فـاع-مـذ-وا-ج: چـاڼوونکي (مـؤ: چـاڼوونکې)](۱) چـاڼ کـوونکے- صـفا کـوونکے (۲) تـلاش کـوونکے- لټوونکے.

**چانـه** :- (چـا+نْ+ړه)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ-وا-ج: چـانې]- چـاڼ- هغـه وړکوټے پروزے شان چې چائې تېل يا غوړي پرې چاڼ کولے شي. چانې- چانے.

**چانـه** :- (چا+نْ+ړَه)-[اِپ (يوسف)-اس-مـؤ]- هغـه لرګـوټي چـې د چـت د کـړاو دپاسه اچولے شي.

**چاڼي** :- (چا+نْ+ړِيْ)-[اِپ (سو) اس-ص-مذ]- بنکرور غواے.

**چاڼۍ** :- (چا+نْ+ړئ)-[اِپ-اس-مؤ]- و_______ چانه.

**چاڼے** :- (چا+نْ+ړے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- نرګونګټ.

**چاڼېدل** :- (چا+نْ+ړې+د+لْ)-[اِپ-مص لا]- چاڼ کېدل.

**چاڼېدنه** :- (چا+نْ+ړې+د+نه)-[اِپ-حمص]- (۱) چاڼېدهٔ- چاڼکېدنه صفا کېدنه. (۲) تلاش کېدنه- لټون کېدنه.

**چاڼېـدونکے** :- (چا+نْ+ړې+دُو+نْ+کے)-[اِپ-مف-مـذ-وا-ج: چاڼېـدونکي (مـؤ: چاڼېدونکې)]- صفا کېدونکے- چاڼکېدونکے.

**چانس** :- (چا+نْ+سْ)-[اَنګ:اس-مذ-وا-ج: چانسونه]- موقع-وار.

**چانسلر** :- (چـا+نْ+س+لَ+رْ)-[اَنـګ-اس-مـذ]- د يونيورسـټۍ يـا پوهنتـون د ټولو نه لوے عهدېدار.

**چانک** :-(چا+نَ+ کْ)-[اِپ - اس- مذ ]چاہنګ - هغـه لوښے چې چائې په کښې اچولے شي.

**چـاوجۍ** :- (چـا+وُ+جئ)-[اَف:پ (قـاموس) اس-مـؤ]- چـاوجي- د جـامې څنډه- ژۍ يا کناره.

**چاود** :- (چا+و+دْ)-[اِپ-اس-مـذ-وا-ج: چاودُونه]دوه ځايـه- چـاودون- درز- څیر- چاك.

ستا د مرګ په نعره زړهٔ زما دپاره شـهٔ
خود به چاؤد چې پرې د هجر منشارتېر شهٔ (علي خان)

**چاودل** :- (چا+وُ+د+لْ)-[اِپ-مص]- دوه ځايه کېدل- درز په کښې راتلل څیر په کښې پيدا کېدل- ترکېدل.

نهٔ چې زړهٔ زما يواځې په غم وچاؤد
ډېر عالم سره په درد و الم وچاؤد (علي خان)

**چاودلے** :- (چا+وُ+د+لے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چاودلي (مؤ:چاودلې)]- دوه ځايه شوے- ترکېدلے- څیر په کښې شوے.

**چاوُدون** :- (چا+ؤ+دُو+نْ)-[اِپ-اس-مذ]- و_______ چاؤد.

**چاودهٔ** :- (چا+وُ+دهٔ)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: چاودې]- د يخنۍ لـه کبلـه د لاسـو او پښو څرمن ترکېدنه.

**چـاودے** :- (چا+وُ+دَے)-[اَف:پ (قـاموس) اس-مـذ]- چاودلے- د شيشـې يـا د چينې ترکېدلے لوښے.

**چاول** :- (چا+وُ+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- د اوبو موري.

**چاول** :- (چا+و+لْ)-[اَف:پ (قـاموس) اس-مذ-وا-ج: چاولونـه]- سـال- شـاقول- هغه څيز چې مستريان د دېوال نيغ والے پرې ګوري.

**چاوه** :- (چا+وَه)-[اَف:پ (قاموس)اس-مؤ]- په ګوره خوږه شوې هغـه جوشـانده يا کاږه چې د زکام دپاره استعمالېږي.

**چايـل** :- (چـا+ي+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: چايلونـه]- بُرقعـه- بورقه- نقاب.

**چائې** :- (چا+ئې)-[ه-اس-مؤ-ج]- يو قسم توري يا شنې پاڼې چې په اوبو کښې ختېکولے شي- چيني او پې په کښې ګډ کړي او خلق ئې څښي- چې- چائې- چئې.

**چائې پانړې** :- (اص- چائې اوبۀ- خوراك څښاك.

**چائې پانړې کول** :- (اص- چائې اوبۀ کول- خوراك څښاك کول.

**چــاېجوش** :- (چــا+ئې+جو+شْ)-[اپ-اس-مــذ-وا-ج: چاېجوشـــونه]- و___ چاجوش.

**چــاېنجوش** :- (چــا+ئې+نْ+جو+شْ)-[اپ (وز)-اس-مــذ-وا-ج: چاېنجوشـــونه]- و___ چاجوش.

**چاېنک** :- (چا+ئې+نَ+كْ)-[اپ-اس-مذ-وا-ج:چاېنکونه]- و___ چانك.

**چپ** :- (چ+پ)-[اپ-ص-مؤ-وا: چپه-ج: چپې]- (۱) خاموش- غلے. (۲) امر: غلے شه. چپ شه. خولۀ بنده کړه.

**چپ** :- (چَ+پْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ (مؤچپه)] خطا-غلط- بې لارې. (۲) بغير بې له دې. (۳) سپك هلك.

**چپ قدم ايښودل** :- (اص- (۱) غلط قدم کښېښودل. (۲) منافقت کول.

**په چپه لار تلل** :- (اص- په غلطه لار تلل- ګمراه کېدل- بې لارې کېدل.

**د نظر نه چپ راتلل** :- (اص- د نظر نه سپك راتلل- په نظر بد لګېدل.

**چپاتۍ** :- (چَ+پا+تۍ)-[اپ (ګن)-اس-مؤ-وا-ج: چپاتيانې]- چپاتے- چپاتې- پاستے- نرمه ډوډۍ- پُکے.

**چپاټه** :- (چ+پا+ټه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج:چپاټې]- يو قسم پيزار.

**چپــاټې** :- (چ+پــا+ټې)-[اَف:پ (قــاموس) اس-مـؤ]- ټـوقې- وشتې مســخرې- ملنډې.

**چپاټې کول** :- (اَف)-اص-ټوقې کول- وشتې کول- مسخرې کول- منډې کول.

**چپــاؤ** :- (چ+پــا+ؤ)-[اپ-اس-مــذ]- (۱) د حملـې پـه وخـت کښــې تېزتــګ. (۲) ناڅاپه حمله- چاپه- يرغل. (۳) او بيور اَس.

**چپاؤ اچول** :- (اص- (۱) ناڅاپه حمله کول- چاپه اچول- يرغـل کـول. (۲) څۀ کـار کښې بيړه کول.

**چپاؤ اخستل** :- (اص- ډېرې تلوسې اخستل- بيړه کول- څه کارته بې صبره کېدل.

**چپاؤ پروړل** :- (اص- په چا حمله کول- ناڅاپې پرې ورختل.

**چپاؤ کول** :- (اص- حمله کول- يرغـل کول- د دښمن نه مال اسباب وړل

**چپاؤکېدل** :- (اص- حمله کېدل.

**په يوه چپاؤ تلل** :- (اص- ډېر په بيړه تلل.

**چپاول** :- (چ+پا+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چپاولونه]- د سرټولے- د فوځي دستې هغه ټولګے چې د نور لښکر نه وړاندې ځي.

**چپاوول** :- (چ+پا+و+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص مت]- چپــاؤکول- لـوټ کـول- تالاکول- تالاترغه اچول.

**چپاوونه** :- (چ+پا+و+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- لـوټ کونـه- تـالاکونـه- تالاترغه اچونه.

**چاپوونکے** :- (چ+پا+و+وُ+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-فـاع-مذ-وا-ج: چپـاوونْکي (مؤ: چپاوونکې)چـ لوټ کوونکے- تالاکوونکے- تالاترغه اچوونکے.

**چپاوېدنــه** :- (چ+پا+دې+د+نــه)-[اَف:پ (قــاموس) حمـص]- چپاوېـدۀ- لـوټ کېدنه- تالاکېدنه.

**چپاوېــدونکے** :- (چ+پــا+وې+دُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قــاموس) مــف-مــذ-وا-ج: چپاوېدُونکي- (مؤ: چپاوېدُونکې)]- لوټ کېدونکے- تالاکېدونکے.

**چپاوېدۀ** :- (چ+پا+وې+دۀ)[اَف:پ (قاموس) حمص]- و___ چپاوېدنه.

**چُپائي** :- (چُ+پا+ئي)-[اپ-اس-مؤ]- چپ والے- خاموشي- دا کلمـه د چپـه، سره يوځاے راځي- لکه چپه چپائي.

**چپتری** :- (چَ+پ+ت+رئ)-[اَف:پ (قاموس) اس-مؤ]- د شفتلو په شان يـو قسم شينکے.

**چپتــوت** :- (چ+پ+تــو+ت)-[اپ-اس-مـذ]- چپتيـا- چپـوالے- خاموشـي- غلے کېدنه.

**چپتــوب** :- (چَ+پ+تــو+ب)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مــذ]- چپتيــا- چپــوالے- مخالفت- پل غلطي- غلط قدم کښېښودنه.

**چپتيا** :- (چ+پْ+ت+يا)-[اپ-اس-مؤ]- و___ چپتوب.

**چپــټ** :- (چ+پَ+ټْ)-[اَف:پ (قــاموس)-اس-مــذ-مـؤ: چپټــه-ج: چپټــې]- ټوقمار- ټوقې- دوړې مار.

**چَپــټ** :- (چَ+پَ+ټْ)-[اپ-اس-مـذ-مـؤ-وا-چپټـه-ج: چپټــې]- (۱) مضـبوط هلك- غټ هلك- تندرست بچے. (۲) څرګند- ښکاره.

دوه درې حجـابــه څـۀ دي چې ئې تۀ په مخ کښې نيسې
پــه زر پــردو کــښې کښــېنه بــيا وما وته چپټ ئې (خوشحال)

(۳) تباه- تالا- برباد.

**چَپټ** :- (چَ+پَ+ټْ)-[اپ (مذ)-اس-مذ]- د اوبو د بند د ترلو دپاره رابللے خلق- اشر- لښکر- بلندره- بګاره.

**چپټه** :- (چ+پَ+ټه)-[اَف:پ (قاموس) اس-مؤ-وا-ج: چپټې]- هغه لرګے چې په دېوال کښې د مضبوطيا دپاره ورکولے شي.

**چپ چاپ** :- (چ+پ+چا+پ)-[اپ-ص]- خاموش غلے.

**چپــر** :- (چ+پَ+رْ)-[اَف:پ (قــاموس)-اس-مــذ]- اســتازے- قاصــد- خبـرې وړونکے.

**چَپــر** :- (چَ+پَ+رْ)-[اپ (ګـن)ه: چپتــر-اس-مـذ-وا-ج: چپرونـه]- څپـر- سـاله- خونه.

**چپـر غـټ** :- (چپـر+غَ+ټ)-[اَف:پ (قـاموس) اس ص-مـذ (مؤ-وا: چپرغټـه-ج: چپرغټې)]- څورب- غټ- مضبوط- تيار- ساتلے. چروب.

**چپړګے** :- (چ+پ+رګے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: چپړګي]- د ونې نـه را پرېکړې وړه څانګه.

**چپره** :- (چَ+پْ+رَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: چپرې]- د څرمنې د صفا کولو لوے رمبے.

**چپرے** :- (چَ+پْ+رے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- ورکوټے تالاؤ- حوض.

**چَپړ** :- (چَ+پَ+ړ)-[اپ-ص-مذ]- (۱) چپليت- اوار. (۲) څورب- ساتلے

**چپړې ښورول** :- (وز)-اص- لښګې بربنډ ساتل- اکثر دا ماشومانو تـه وئيلې کېږي – لکه (څه چپړے ښوروې)

**چپړاخــه** :- (چ+پ+ړا+خــه)-[اَف:پ (قــاموس)-اس-مــؤ-وا-ج: چپړاخــې]- چپړاکه- چپلاغه- څپېړه- تتوره- چاپېړه.

**چپړاســي** :- (چ+پ+ړا+سـي)-[اپ-اس-مـذ-وا-ج: چپړاسيان]دفتري- د دفتـر ملازم.

**چپړاکه** :- (چ+پ+ړا+که)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: چپړاکې]و___ چپړاخه.

**چپړتاخ** :- (چ+پَ+ړْ+تا+خْ)-[اپ (ظفر)-اس-مذ]- چندرو- د ماشومانو يوه لوبه.

**چپـــړدخ** :- (چ+پَ+د+خْ)-[اَف:پ-(قــاموس)-اس-مذ]چنــدرو- چپړتــاخ- د

ماشومانو لوبه.

**چپـروس** :- (چَ+پْ+رُوْ+سْ)-[اپ-اس-مـذ (مـؤ-وا: چپروسـه-ج: چپروسـي)]- خوشامدي- خوشامندګر- چاپلوس- غوړمال- غوړاوو.

**چپروسي** :- (چَ+پْ+رو+سِيْ)-[اپ-اس-مؤ]- خوشامنده- چاپلوسي.

**چپروسي کول** :- (اص- خوشامنده کول- چاپلوسي کول.

**چپـړي** :- (چَ+پْ+ړِيْ)-[اَف:پ (قاموس) ص-مـؤ] پيپـرك- پيپـړه- مانـده ياړنګره غوښه.

**چپـړي چپـړو** :- (چپـړي+چَ+پْ+ړو)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-ص-مـؤ]- سسـته پسته ښځه-ناراسته زنانه.

**چپـک** :- (چ+پ+کْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ (مـؤ-وا: چپکـه-ج: چپکـې)]- چپ سترګې- چپې- کوږ سترګي- چغر.

**چُپـک** :- (چُ+پَ+کْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]- بـاز- د باښـې نـر- يـو قسم ښکاري مارغهٔ.

**چپکتـوب** :- (چ+پ+کْ+تـو+بْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]- چپکتيـا- د سترګي کوږوالے.

**چپکتيا** :- (چ+پ+کْ+تْ+يا)-[اَف:پ (قاموس)اس-مؤ]- و______ چپکتوب

**چپکو** :- (چ+پ+کو)-[اَف:پ (قاموس)-ص]- ګخې-ګسے- ګس لاسے- کيڼ لاسے.

**چپکه** :- (چ+پ+کَه)-[اپ (ب،خ)-اس-مؤ-وا-ج: چپکې]- چپـه- چپي- مچې- بوسه- چُومی.

**چپل** :- (چ+پ+لْ)-[ه-اس-مذ-ج]- يو قسم سپك پيزار.

**چپلکه** :- (چَ+پ+لَ+کَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: چپلکې]- زوړ پيزار.

**چپلی** :- (چ+پ+لیٔ)-[اپ-ه:چپلي-اس-مؤ]- چپلي- کېړۍ- يو قسم پيزار.

**چپليـت** :- (چَ+پْ+لِيْ+تْ)-[اپ-ص-مـذ-مـؤ-وا- چپليتـه-ج: چپليتـې]- اوار- چير.

**چپليتول** :- (چَ+پ+لِيْ+تَ+و+نه)-[اپ-حمص]- چپړونه- اوارونه.

**چپن** :- (چ+پ+نْ)-[اپ (ظفر)-اس-مذ (مؤ: چپنـه-ج: چپنې)]چپنـه- چُوغـه- قبا- شُوکه.

**چپنه** :- (چ+پ+نه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: چپنې]- و______ چپن.

**چپنـډه** :- (چَ+پ+ن+ډه)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ-وا-ج: چپنډې]- ټـوټئـې- د لرګي کاسه.

**چپو** :- (چ+پُوْ)-[ه-اس-مذ-وا-ج: چپوان]- دکشتۍ چلولو چپه.

**چپوالے** :- (چ+پ+وا+لے)-[اپ-اس-مذ]- و______ چپتوب.

**چپوالے** :- (چَ+پْ+وا+لے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- و______ چپتوب

**چپ وچـور** :- (چ+پ+و+چـو+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ] تـالاترغـه- لـوټ شوے.

**چپوښ** :- (چ+پُوْ+ښْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- لنګيـه ور- هغـه سړے چې لنګي ئې اوږدهٔ وي.

**چپ وغروپ**:-(چ+پ+و+غ+رُوْ+پْ)-[اپ-اس-مذ]- ببخي خاموش- غلے پلے.

**چپ وغروب يو کول** :- (اص- ببخي غلي کول- خاموش کښښول.

**چپ وغروپ يو کېدل** :- (اص- ببخي غلي کېدل- خاموش کښښستل

**چپول** :- (چ+پو+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-مؤ-وا-چپولـه- ج: چپـولې] (۱) کوږ سترګي- چپك سترګي.(۲) چُوډے- پډے هغـه ښوك چې پښې ئې کږې وي.

**چپول** :- (چ+پ+و+لْ)-[اپ-مص مت](۱) غلے کول- چپ کول(۲) چپي کول- چومل.

**چپونـه** :- (چ+پ+و+نه)-[اپ-حمص]- (۱) چپونـګ- غلـے کونـه- خـاموش کونه. (۲) چپي کونه- چومنه.

**چَپونه** :- (چَ+پ+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]چپونګ- اړونه- بې لارې کونه.

**چَپونه** :- (چَ+پَ+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]چپونګ- پـه خولـهٔ کښې چړپونه.

**چپـو نے** :- (چ+پُـوْ+نے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: چپـونې]- د صابون استعمال شوے وړه ټکړه.

**چپوونکے** :- (چ+پ+وُوْ+نْ+کے)-[اپ-فـاع-مـذ-وا-ج: چپـوونکي (مـؤ: چپـوونکې)]- (۱) چـپ کـوونکے- خـاموش کـوونکے- غلـے کـوونکے. (۲) چپي کوونکي- چومونکے.

**چپه** :- (چ+پَه)-[اپ-اس-اس-مؤ-وا-ج: چپې]- څپك- ځلور ګوتې.

**چپه** :- (چ+پَه)-[اَف:پ (قاموس)- اس-مؤ]- د کوټې د موري لرګي- چجه.

**چپه** :- (چ+پَه)-[اپ(خل)-اس-مؤ]- منډو- د دوؤ غوايانو غوبل چې روستو د ونې ښانګه وربسې راکښلې شي.

**چپه** :- (چ+پَه)-[اپ-اس-مؤ](۱) د کشتۍ چپـه. (۲) اپوټه. پړمخ. سر د لاندې. (۳) د مرض غلبه. (۴) د اوبو څپه.

**چپه پرې راتلل** :- (اص- د مرض غلبه کېدل.

**چپه پښه اخستل** :- (اص- غلطه را نيول- ناړامه نيول.

**چپه کول** :- (اص- پړمخ کول- اپوټه کول.

**چپـه کېـدل** :- (اص) (۱) پـړمخ کېـدل- اپوټـه کېـدل(۲) قسـمت خرابېـدل بدبخته کېدل.

**چپه لار نيول** :- (اص- غلطه لار نيول- په غلطه سرکېدل.

**چپه وهل**:- (اص- (۱) د کشتۍ چپه په اوبو کښې وهل. (۲) چپاؤ کول حمله کول.

**پر چپه لار تلل** :- (اص- په غلطه لار تلل- مخالفت کول.

**په چپه کښې کېدل** :- (اص- مخالف کېدل- مخالفت کول.

**چَپه** :- (چَ+پَه)-[اپ-اس-مؤ-وا-ج: چپې]- چپي-مچې- بوسه- چومی.

**چپه اخستل** :- (اص- مچې اخستل- چپي کول- چومی اخستل.

**چپه ورکول** :- (اص- چپي ورکول- مچې ورکول- بوسه ورکول- چومی ورکول.

**چپـه** :- (چَ+پـه)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ]- (۱) مخالفـت-دښـمني - عداوت.(۲) ناراستي.

**چپه چپائي** :- (چَ+پَه+چ+پا+ئي)-[اپ-ص-مؤ]- چپه چپيا- بالکل خاموش.

**چپه چپيا** :- (چَ+په+چ+پْ+يا)-[اپ-ص-مؤ]- و______ چپه چپائي.

**چپـه لار** :- (چ+پَـه+لا+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ]- (۱) غلـط لار- (۲) د وېښتو کږه لار- يوطرف ته ويستلې شوے پېرشوني- کږه شيخهٔ.

**چپه لار اړول** :- (اَف)-اص- چپـه لار ايسـتل- پـه وېښـتو کښـې يـو طـرف تـه لار جوړول-کږه شيخهٔ ايستل- يو طرف ته پېر شوني ايستل.

**چپه لار ايستل** :- (اَف)-اص- و______ چپه لار اړول.

**چپے** :- (چَ+پے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ(مؤ: چپۍ)]- (۱)چپ سترګې- کوږ سترګې. (۲) ګخ لاسے- ګخے- کيڼ لاسے. (۳) د کږو ښکرونو غواے.

**چپے** :- (چ+پے)-[اپ (ګن)-اس-مذ]- هغه غواے چې ښکر يې مات وي.

**چُپيا** :- (چُ+پ+يا)-[اپ-ص-مؤ]-خاموشي- غلے والے- دا ټکے د چپه- سره

استعمالېږي لکه ((چپه چپیا))

**چپېدل** :- (چ+پې+د+لْ)-[پ-مس لا]- چپ کېدل- خاموشه کېدل- غلے کېدل.

**چپېدنه** :- (چ+پې+د+نه)-[پ-حمص]- چپېدنګ- چپېدۀ- چپ کېدنه غلے کېدنه- خاموش کېدنه.

**چپېدۀ** :- (چ+پې+دۀ)-[پ-حمص]- و______ چپېدنه.

**چپېړه** :- (چَ+پې+دۀ)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: چپېړې]- څپېړه- چاپېړه- تتوړه.

**چَت** :- (چَ+تْ)-[پ-ه:چېت-اس-مذ-وا-ج: چتونه]- د کټې هغه حصه چې دېوالونه او فرض ئې پټ کړے وي.

**چتـر** :- (چ+تَ+رْ)-[پ (ب،خ)-اس-مذ-وا-ج: چترکي]- (۱) چترکے- چتے- چتکے- یوه ورکوټې شان مرغۍ چې هر وخت ناقلاره وي. متل: چتریوه خولۀ خو ډېره بنۀ خولۀ. (۲) کمزورے- مانده.

**چَتر** :- (چَ+ت+ر)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- (۱) څلور غابښے اوښ- هغه اوښ چې عمر ئې څلور کاله وي. (۲) کېرۍ چې مېنځ د وېښتو نه خالي او بالکل صفا وي. (۳) د زخم د جوړېدو نه پس پاتې شوے نشان. (۴) صفا سوتره. (۵) چجه. (۲) په قېنچي پرېکړې زلفې چې په تندي را زانګي.

**چترونه ایښوول** :- (اَف)-اِص- پرېکړې زلفې په تندي ولول کول.

**چتره لار** :- (اِص- چپټه لار- څرګنده او معلومه لار.

**سر چترکول** :- (اَف)-اِص- سر یو چتر درول- سر کلول- سر د وېښتو نه پاکول.

**سرچترکېدل** :- (اَف)-اِص-سر کلېدل- سر د وېښتو نه پاکېدل.

**سر یو چتر درول** :- (اَف)-اِص- و______ سر چترکول.

**چَتر** :- (چ+ت+رْ)-[پ-س: چېتر-اس-مذ]- لویه چترۍ چې د بادشاهانو یا د سردارانو د سر دپاسه لګولے شي.

**چترال** :- (چ+ت+را+ل)-[اس معرفه- مل]- د خیبر پښتونخوا یوه ضلع چې کاشغریان په کښې اوسي.

**چترالۍ** :- (چ+تْ+را+لۍ)-[پ-اس-مؤ]- (۱) د چترال ژبه چې هغوي ورته کهوار وائي. (۲) چترالۍ ښځه.

**چترالے** :- (چِ+تْ+رَا+لے)-[پ-اس-مذ-وا-ج: چترالیان-(مؤ: چترالۍ)] د چترال اوسېدونکے- د چترال سره تعلق لرونکے.

**چترالي پټۍ** :- (چ+تْ+را+لِيْ+پ+ټۍ)-[پ-اس-مؤ]- په چترال کښې د وړیو نه په لاس جوړه ګرمه کپړه چې ټوپۍ، کوټونه او چوغې ترېنه جوړېږي.

**چَترک** :- (چَ+تْ+رَ+كْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- یو قسم د پېڼو یا د شپېشتو لوبه چې دري پلے هم ورته وائي.

**چترکے** :- (چ+تَ+رْ+کَے)-[پ (ب،څ)-اس-مذ-وا-ج: چترکي]- چتر- چتکي- چتے.

**چَترکے** :- (چَ+تْ+ر+کَے)-[اَف:پ (قاموس)-اسمذ-وا-ج: چترکي (مؤ: چترکې)]- ټیټکے- ټېمرکے د ورکوټي قد خاوند.

**چَترۍ** :- (چَ+تْ+رۍ)-[پ-ه:چېتري-اس-مؤ-وا-ج: چتریانې](۱) ورکوټے چتر- د نمر او د باران نه د ځان ساتلو څیز. (۲) اواره او پاکه لار. (۳) دغي- داغدار.

**چتري** :- (چَ+تْ+رْ+یِيْ)-[اَف:پ (قاموس)-ص]- د چتر په شان یو ګل د دے سره دپك ټکے هم وئیلے شي لکه چتري پك.

**چتـړ** :- (چَ+ت+ړ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چتړونه]یو قسم لکیرداره کپړه.

**چتکے** :- (چ+تْ+کَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا: چتکي]- چرندك- چتے- چتر- چترکے.

**چتکے چتکے** :- (چ+ت+کے+چ+ت+کے)-[اَف:پ (قاموس)-ص]- لږ لږ- کم کم- لژکي لژکي.

**چتله** :- (چَ+تْ+لَه)-[اَف:پ (قاموس)-ص]- مښلے شوے- اوړۀ شوے پوست کړے شوے.

**چَتـه** :- (چَ+تـه)-[پ-ه: چېتـا-اس-مـؤ-وا-ج: چتـې]- (۱) د ګبینـه وړے- د ګګبینۀ څپیاکه- د ګبین د مچوکور- پوځه. (۲) رنګ څېره.

**ترچته اوښتل** :- (اِص- تر چته وتل- رنګ تور راوتل- د ډېر قهر او غصې نه رنګ بدلېدل.

**ترچته وتل**:- (اِص- و______ ترچته اوښتل.

**چته** :- (چَ+تَه)-[پ (ب،خ-وز)-اس-مؤ]- پام-سوچ-فکر-خیال- ځان ساتنه.

**چته کول** :- (اِص- پام کول- خیال کول- په احتیاط ګرځېدل.

**په چته کېدل** :- (اِص- په هوش کښې کېدل- پام لرل.

**چتے** :- (چ+تے)-[پ-اس-مذ-وا-ج:چتي]- جورندك- چتکے- چتر.

لکـه چـتے درسـته ورځ درومي په پورته
هغه هرمي بازشاهین درومي یودم کښې (خوشحال)

**په چتي پسې باز پرېښول** :- (اِص- د بې علقې کار کول- د لږ څۀ ګټلو دپاره زیات تاوان په سر اخستل.

**چتے** :- (چَ+تَے)-[پ (ب،خ)-اس-مذ-وا_ج: چتي]- چوتے- هغه نرمه شان کپړه چې اېنډزن ئې اوترې او نورې جامې اوباسي.

**چُتے** :- (چُ+تے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چُتي]- د دروازې چوڼ.

**چَـټ** :- (چَ+ټ)-[پ-اس-مـذ-وا-ج: چټـان (مـؤ-وا:چټـه-ج: چټـې، چټـانې)]- (۱) غریب- ملنګ- خوار. (۳) ربیر کلے- ربیره برېټ خریلے. (۳) تباه- برباد. (۴) د سپي د خوراك لوښے. (۵) هغه لوښے چې د لوښو د وینځلو په وخت ګنده اوبۀ په کښې اچولے شي. (۲) کار خلاص شوے. (۷) تیار- چټك.

**چَټ کول** :- (اِص- ختمول- تمامول.

**چټ کېدل** :- (اِص- ختمېدل- تمامېدل.

**چټـاک** :- (چ+ټـا+كْ)-[پ-ه:چېټانـك-اس-مـذ-وا-ج: چټاکونـه]- (۱) د پـاؤ څلورمه حصه- د تول یو وزن- چټاکۍ. (۲) کم څیز- لږ شان څیز.

**چټاکۍ** :- (چ+ټا+کۍ)-[پ-اس-مؤ]- و______ چټاك.

**چټاوټ** :- (چَ+ټا+وَ+ټْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- ناڅاپي ګذار.

**چټائي** :- (چَ+ټا+ئيْ)-[ه-اس-مؤ]- پوزے- انډېرے- ټاټ.

**چَټ پَټ** :- (چَ+ټْ+پ+ټْ)-[پ-ص]- (۱) سمدستي- فوراً.

**چـټ پـټ کـول** :- (اِص)- (۱) سمدستي کول. فوراً کول. (۲) بېخي تباه کول. (۳) کار تمامول.

**چټ پټ کېدل** :- (اِص- (۱) سمدستي کېدل- فوراً کېدل. (۲) بېخي تباه کېدل. (۳) کارتمامېدل.

**چټ پټي** :- (چَ+ټْ+پَ+ټِي)-[پ-اس]- (۱) سمدستي. (۲) تیار- تابعدار.

**چټـک** :- (چَ+ټ+كْ)-[پ-ص-مـذ (مؤ-وا: چټکـه-ج:چټکـې)]- تېـز- چابـك- چست- چالاك.

**چُټک** :- (چُ+ټ+كْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- څټك- د اینګر یو اوزار چې اوسپنه پرې ټکوي- څټۍ.

**چَټـک تسـمه** :- (چَټك+تَ+سْ+مَـه)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: چټـك

تسمې]- کمربند.

**چټکتـوب** :- (چ+ټَ+کْ+تـو+بْ)-[پ-اس-مـذ]- تېـزي- چُسـتي- چټکـي- چټکتيا.

**چټکتيا** :- (چَ+ټَ+کْ+تْ+يا)-[پ-اس-مؤ]- و__________ چټکتوب.

**چټکه** :- (چ+ټ+کَه)-[پ-اس-مؤ]- د الوان يا سُور ټوکي ټکړه.

بړغ ئې لاړ په درست جهان د بدکارۍ

سُور برغ د چټکي پورې په لکړې (خوشحال)

**چَټکي** :- (چَ+ټَ+کِيْ)-[پ-اس-مؤ]- و__________ چټکتوب.

**چټکي کول** :- (اص- چستي کول- تېزي کول.

**چُټکي** :- (چُ+ټْ+کي)-[پ-اس-مؤ]- چوټکه- چوټۍ- د هندوانو د سر لړ شان اوږدۀ ويښتۀ.

**چُټکي کول** :- (اص- چوټکه يا چوټۍ پرېښول.

**چټکے** :- (چ+ټ+کَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- زېړې- ښېړې.

**چَټل** :- (چَ+ټَ+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مذ(مؤ-وا: چټلـه-ج: چټلې)] پليت- گنده- سخا- خيرن خيچن- مېلا.

**چټلتـوب** :- (چَټـل+تو+بْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]- چټلتيـا- چټلـوالے- ناپاکي- گنده توب- پليتي- چټلي- سخاتوب.

**چټلتيا** :- (چَټل+تْ+يا)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- و______ چټلتوب.

**چَټوالے** :- (چَټل+وا+لے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-و_____ چټلتوب.

**چټلـول** :- (چَ+ټَ+لْ+و+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-مـص مـت]پليتـول- ناپـاکول- گنده کول.

**چټلونگ** :- (چ+ټَ+وَ+نْ+گْ)-[اَف:پ(قاموس)-حمص]- و______ چټلونه

**چټلونـه** :- (چَ+ټَ+ل+و+نـه)-[اَف:پ (قـاموس)-حـمـص]- چټلونـگ- پليتونـه- گنده کونه- ناپاکونه.

**چټلوُونکـے** :- (چَ+ټ+لْ+وُوْ+نْ+کـے)-[اَف:پ (قـاموس)-فـاع-مـذ-وا-ج: چټلـوُونکي- (مـؤ: چټلـوُونکې)]- پليتـووُنکے- گنـده کـوُونکے- ناپاکوُونکے.

**چَټلي** :- (چَ+ټَ+لي)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- چټلتوب.

**چټلېدل** :- (چَ+ټَ+لې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص لا]- گنده کېدل- پليتېدل- ناپاکېدل.

**چټلېدنه** :- (چَ+ټَ+لې+د+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- چټلېدنگ- چټلېدۀ- گنده کېدنه- ناپاکېدنه- پليتېدنه.

**چټلېـدُونکے** :- (چ+ټَ+لـې+دُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس) مـف-مـذ-وا-ج: چټلېدُونکي- (مؤ: چټلېدونکې)]- ناپاکېدُونکے- پلېتېدُونکے- گنده کېدُونکے.

**چټلېدۀ** :- (چَ+ټَ+لې+دۀ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- و____ چټلېدنه.

**چټني** :- (چ+ټ+نيْ)-[ه-اس-مؤ]چټني- هغـه تريـو او ترخکـونے ثيـز چې مالگـه، مرچکـي، پيـاز، اوږه، وېلـنے يـا شـنه دهنيـا اوټکـوي او د ډوډۍ سره خوړلے شي.

**چټني ټکول** :- (اص- چټنې ټکول- مالگه مرچ مساله، اوږه وغېره مېده كول- چټني جوړول.

**چټني جوړول** :- (اص- و__________ چټني ټکول.

**چټني کول** :- (اص- (۱) چټني ټکول. (۲) څه ثيز ښۀ پستول- ذرې ذرې کول.

**چټو** :- (چ+ټُوْ)-[پ-اس-مذ-وا-ج: چټوگان]- يو قسم د لرگي لنګرۍ يا بغرۍ.

**چټو** :- (چ+تو)-[اَف:پ (قاموس) اس-مؤ]- فضول خرڅه- دا ټکے اکثر د لړو سره يوځاے راځي. لکه: لړو چټو.

**چَټـول** :- (چَ+ټ+و+لْ)-[پ-مـص]- (۱) تبـاه کـول- د وېخـه ويسـتل. (۲) سرته رسول- پوره کول- چټ کول.

**چټونگ** :- (چ+ټ+و+نْ+گْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- و____ چټونه

**چټونـه** :-(چَ+ټ+و+نـه)-[پ-حمـص](۱) چټونـگ- تبـاه کـون- د وېخـه ويسـتنه (۲) سرته رسونه- پُوره کونه- چټ کونه.

**چټـولړو** :- (چ+ټـو+وُ+ل+ړو)-[پ-ص]- (۱) لـړو چټـو- ناپـاك- سـخا- گنـده. (۲) فضول خرچي- بې ځايه خرڅ.

**چټولړو کـول** :- (اص- (۱) ناپاكول- سخاكول- گنده كـول. (۲) بې ځايـه خرڅ كول- فضول خرچي كول.

**چَټوُونکـے** :- (چَ+ټ+وُو+نْ+کـے)-[پ-فـاع-مـذ-وا-ج: چټـوونکي (مـؤ: چټـوونکې)]- (۱) تبـاه کـوونکے- د ببخـه ويسـتونکے- چـټ کـوونکے. (۲) سرته رسوونکے- پوره کوونکے.

**چټه** :- (چ+ټه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- يو قسم جواري- سُود.

**چَټـه** :- (چَ+ټـه)-[پ (ظفر)-ص- مؤ-وا-ج: چټې]- (۱) بې باكـه- مسـته او ازاده ښځه.

**چټۍ** :- (چَ+ټيْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- (۱) د زناناؤ ځادر. (۲) رقعه- خط- ليك- چټي.

**چټي** :- (چَ+ټيْ)-[پ-اس-مؤ]- (۱) اواره گردي. (۲) ډنډ. (۳) فضول- بېهوده- عبث. (۴) تروټه- تاوان.

عشق پخواوُ اوس چټي شوه په هجران کښې

گران اسان لـيد شي په وخت کښې د شروع (علي خان)

**چټي کول** :- (اص- تروټه کول- تاوانول.

**چټي کېدل** :- (اص- څۀ ثيز په چا تاوان کېدل- ډنډ کېدل.

**چټي وئيل** :- (اص- فضول ږغېدل. بې فايدې خبرې کول- دروغ وئيل.

**چټي** :- (چ+ټِيْ)-[پ-ه: چېټي-اس-مؤ]- خط-ليك-رقعه.

**چُټي** :- (چُ+ټِيْ)-[پ-ه: چېټي-اس-مؤ-وا-ج: چټيانې]- (۱) رخصت- اجازت. (۲) موقوفي. (۳) بې غمي.

**چټي اخستل** :- (اص- رخصت اخستل- اجازت اخستل.

**چُټـي کـول** :- (اص- (۱) د کـار نـه چټـي اخسـتل. (۲) رخصـت ورکـول. (۳) فارغول.

**چټـي ورکـول** :- (اص (۱) رخصـت ورکـول- اجـازت ورکـول. (۲) فـارغول موقوف کول.

**چټيا ټ** :- (چَ+ټ+يا+ټْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- فضولې خبرې عبث خبرې.

**چټيا ټ وئيل** :- (اَف- اص- فضولې خبرې کول- عبث ږغېدل.

**چټېـــدل** :- (چَ+ټـې+د+لْ)-[پ-مـص لا]- (۱) تبـاه کېـدل- برباد ېـدل. (۲) سرته رسېدل- پوره کېدل.

**چټېدنـه** :- (چَ+ټې+د+نـه)-[پ-حمـص]- (۱) چټېـدنگ- چټېـدۀ- تبـاه كېدنـه- بربادېدنه. (۲) سرته رسېدنه- پوره کېدنه.

**چټېـدُونکے** :- (چَ+ټـې+دُوْ+نْ+کے)-[پ-مـف-مـذ-وا-ج: چټېـدُونکي- مـؤ: چټېـدونکې]- (۱) تبـاه کېـدُونکے- برباد ېـدُونکے- سـرته رسـېدونکے- پوره کېدونکے.

**چتېده** :- (چَ+تې+دهٔ)-[اِپ-حمص]- و___ چتېدنه.

**چتيي رسان** :- (چ+تِيي+رَ+سا+نْ)-[اِپ-اس-مذ]- ډاکي- ډاکیه- ډاك وړونکے راوړونکے.

**چج** :- (چَ+جْ)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: چجونه]- چج- غلبېل- پرویزے.

په چا داد په لپه لمنځ کوي فلکه
پـه چـا لوني په اوربو په چجونه (خوشحال)

**چج وهل** :- (اِص- صفا کول- په چج کول.

**په چج کول** :- (اِص- صفا کول- انول- چج هول.

په څهٔ شان ئې دواړه زلفې کج په کج کړې
یـکباره ئې د عـالم مینې په چج کړې (خوشحال)

**چج بُواري** :- (چَج+بُ+وا+رِيْ)-[اِپ (ګن)-اس-مؤ]- صفائي- سُوتره کونه.

**چج بواري کول** :- (ګن)-اِص- رېبځ تېرول- صفائي کول.

**چجک** :- (چَ+جَ+كْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چجکونه]- د تهپك ګوړا یالیندے.

**چجکې** :- (چ+جَ+کې)-[اَف:پ (قاموس)اس-مؤ]- اړخے- پُښتنۍ= د اړخي یا پښتو سر.

**چجکے** :- (چَ+جْ+کَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج:چجکي]- د مرغانو یا کبانو د نیولو جال- پړکه.

**چجکے** :- (چ+ج+کَے)-[اِپ (سو) اس-مذ]- (۱) د تیلو نه جوړ کړے یو وړوکے شان ببوزے چې د سپرلي پـه موسم کښې ئې د هرې تیلۍ پـه دواړو سرونو د رېدي ګل پیے مرلے شي او هرکله چې د چا سترګې خوږ شي نو دا ورله پورې کوي. (۲) هغه دتېلو یا لښتو جوړ شوے دام چې کبان په کښې نیسي. (۳) پرده یا بیتر. (۴) وړوکے چج.

**چج وائي** :- (چج+وا+ئيْ)-[اِپ (ګن) اس-مذ]- د غلې صفا کولو کار.

**چجه** :- (چَ+جَه)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: چجې]- (۱) د چت هغـه حصـه چې د باران او نمر نه د بچ کېدو پـه غـرض بهر تـه راویستلے شـوے وي. پېڅـول (۲) د کبـانو د نیولـو د لرګـي نـه جـوړ دام. (۳) پښتـې. (۴) د مارچجه. (۵) شن: شپول.

**چچ** :- (چَ+چْ)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: چچونه]- چج- غلبېل- پرویزے.

زور د چـچ د وړلـو نـهٔ لـري نـادانـه
نهٔ پوهېږم چې دا دروند ورے په چاوړي (خوشحال)

**چَچ** :- (چَ+چْ)-[اِپ-اس معرف-مذ]-د اباسین نه پورې غاړه د کیملپور پـه ضلع کښې د یوې علاقې نوم چې پښتانهٔ په کښې اوسي.

که ژوندے شوم دهجران له اوره بچ
پرې به نهٔ ږدم شاعران په سوات چچ (عبدالعظیم)

**چچاړے** :- (چ+چا+ړے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مذ]- ټـاپو- د سیند پـه مېـنځ کښې وچې مزکه- جزیره.

**چچخه** :- (چ+چَ+خه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- نسل- بنیاد.

**چچخه ختل** :- (اَف)-اِص- چچغه وتل. بېخ بنیاد وتل- تباه کېدل.

**چچخه وتل** :- (اِص- و_______ چچخه ختل.

**چچړ** :- (چ+چَ+ړْ)-[اِپ (ګن)-اس-مذ-مؤ: چچړه]- بې شرم سړے چې پـه چا پورې وچ په موچې ځان ونښلوي.

**چچړوبن** :- (چ+چْ+ړ+ب+نْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ (مؤ-وا-چچړوبنـه)] (۱) هغه پخکړے چې شپه پرې تېره شي او اوبهٔ پرېږدي.

**چچونې** :- (چَ+چُو+نې)-[اِپ (داوزي)-اس-مؤ]- بوګرې- بګرۍ.

**چچي** :- (چ+چي)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- څه څه- د شړلو اواز.

**چچې کول** :- (اَف)-اِص- شړل.

**چچے** :- (چَ+چے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- (۱) د ماشومانو پـه ژبه دست تـه وئیلے شي. (۲) چندرو. د ماشومانو د یوې لوبې نوم.

**چخ** :- (چ+خْ-[اِپ-ص]- (۱) بښخ- نتوتے. (۲) د سپي د شړلو کلمه- چخې.

رقیبان دې لکه سپي دي په کوڅه کښې
چـې انـګن دې پاکیزه شي واړه چخ کړه

**چخ کول** :- (اِص- چخې کول- شړل.

که منډې درسره خولهٔ په هر طعام کښې
د نفس سپے دې مردار خوره نهٔ کړو چخ (حمید)

**چخا** :- (چ+خا)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- ماشومانو په ژبه کښې سپے.

**چخابنـــکے** :- (چ+خا+ش+یـــا+خ+کے)-[اَف:پ (قـــاموس)-اس-مـــذ-وا-ج: چخابنکي]- جامه- زامه- برغابنے- کرغابنے.

**چخبیـت** :- (چ+خ+بِـي+تْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-مـؤ-وا: چخبیتـه-ج: چخبیتې]- چپلیت- چپلیخ- مړلے شوے.

**چخبیت کول** :- (اَف)کول- چپلیت کول چپلیخ کول- مړل.

**چخبیت کېدل** :- (اَف)-اِص- چپلیت کېدل. چپلېخ کېدل- مړلے کېدل.

**چخبیتوالے** :- (چخبیــت+وا+لے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]- چپلیتـوالے- چپلیخ والے- پلن والے.

**چخبیتول** :- (چ+خ+بِي+ت+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص-مت]- چپلیتـول- چپلیخول- پلنول.

**چخبیتونـګ** :- (چ+خ+بِـي+ت+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قـاموس)-حمـص] و___ چخبیتونه.

**چخبیتونه** :- (چ+خ+بي+ت+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)حمص]- چخبیتونګ- چپلیتونه- چپلیخونه- پلنونه.

**چخبیتوونکے** :- (چ+خ+بي+تَ+وُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس) فـاع-مذ-وا-ج: چخبیتوونکي (مؤ: چخبیتوونکې)]چپلیتوونکے- چپلیخوونکے- پلنوونکے.

**چخبیتېدهٔ** :- (چ+خ+بي+تې+دهٔ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- و___چخبتېدنه.

**چختـاړ** :- (چ+خ+تـا+ړْ)-[اِپ (ګن)-اس-مـذ-مـؤ-وا: چختـاړه-ج: چختـاړې]- چختاړ- لتاړ- پائمال- تر پښو لاندې مېنلے- رسویلے.

**چختـاړ کـول** :- (اِص- چختـاړول- لتـاړول- پائمـال کـول- رسـویل- تـر پښـو لاندې مېنل.

**چختاړ کېدل** :- (اِص- چختاړېدل- لتاړېدل- رسوېېدل- پائیمال کېدل تر پښو لاندې مېنلے کېدل.

**چختاړول** :- (چ+خ+تا+ړ+و+لْ)-پ-مص-مت]- و_____ چختاړ کول

**چختاړونـه** :- (چ+خ+تا+ړ+و+نـه)-[اِپ-حمـص]- چختاړونـګ- پائمـال کونـه- لتاړ کونه- تر پښولاندې مېنه- رسوینه.

**چختـاړوُونکے** :- (چ+خ+تـا+ړ+وُو+نْ+کَے)-[اِپ-فـاع-مـذ-وا-ج: چختـاړوُونکي-مـؤ: چختـاړوُونکې] لتـاړوونکے- پائمـال کـوونکے- تـر پښـو لانـدې مېنونکے- رسویُونکے.

**چختاړېـدل** :- (چ+خ+تـا+ړې+د+لْ)-[اِپ-مـص لا]- لتاړېـدل- پائمـال کېـدل- رسوېېدل- تر پښو لاندې مېنلے کېدل.

**چختاړېـــدنګ** :- (چ+خ+تـــا+ړي+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قـــاموس) حمــــص]- و ـ چختاړېدنه.

**چختاړېدنه** :- (چ+خ+تا+ړي+د+نـه)- [پ-حمص]- چختاړېدنګ- چختاړېدۀ- لتاړکېدنه- پائمال کېدنه- رسوېبدنه- تر پښو لاندې مبتلے کېدنه.

**چختاړېـــدُونکے** :- (چ+خ+تـــا+ړي+دُوْ+نْ+کے)-[پ-مـــف-مــــذ-وا-ج: چختاړېـدُونکي- مـؤ: چختاړېـدُونکې]- لتاړکېـدُونکے- پائمـال کېدُونکے- تر پښو لاندې مبتلے کېدونکے- رسوېبدُونکے.

**چختاړېدۀ** :- (چ+خ+تا+ړي+دۀ)-[پ-حمص]- و ــــــ چختاړېدنه.

**چختک** :- (چَ+خْ+تَ=کْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- هغه سرے چې د کاریز یا کوهي په تل کښې کار کوي.

**چخته** :- (چَ+خْ+ته)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: چختې]- پتك- هغه نرم او پوست لرګے چې ماشومان ګیتي پرې وهي.

**چخچے** :- (چ+خْ+چَے)-[پ-اس-مذ-وا-ج: چخچي]- تیلے نرے ډکے.

**چخچے وهل** :- (اص- (۱) نرے تیلے په خولۀ کښې وهل. (۲) په څه کار کښې ګوتې وهل. (۳) څه پټه معامله را ښکاره کول.

**چخړ** :- (چ+خْ+ړْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- چکړ- ختېه.

**چخړبه** :- (چ+خْ+ړ+بَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]- ختېې- د باران د کبله مزکه ختېې کېدنه- چیکړ. (۲) ګډوډ شوے څیز- ملغوبه.

**چخړبه جوړول** :- (اَف-اص- (۱) چخړبـه کـول- ختېې کـول. (۲) د خـوراك ډېـر څیزونه سره یوځاے کول- ملغوبه جوړول.

**چخړبه کول** :- (اَف)-اص- وـــــــ چخړوبه جوړول.

**چخړبـه کېدل** :- (اَف)-اص- (۱) ختېې کېدل- چیکړ کېدل. (۲) د خوراك ډېر څیزونه سره یوځاے کېدل- ملغوبه کېدل.

**چخـــړک** :- (چ+خ+ړ+ك)-[اَف:پ (قـــاموس)-اس-مـــذ-مـــؤ-وا: چخړکـه- ج:چخړکې]- چخړن- چخن- هغه څوك چې سترګې ئې هر وخت د چخو نه ډکې وي.

**چخړن** :- (چ+خْ+ړ+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]- و ــــــ چخړك.

**چخــــړوبن** :- (چ+خ+ړو+بْ+نْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]چجړوبن لشـوبه- اوبړن.

**چخړوبنتـوب** :- (چخروبن+تـو+ب)-[اَف:پ(قـاموس)-اس-مـذ]- چخړوبنتیـا- چخړوبنوالے- اوبړنوالے.

**چخړوبنتیـــا** :- (چخړوبن+تْ+یــا)-[اَف:پ (قــاموس)-اس-مــؤ]- و ــــ چخړوبنتوب.

**چخړوبـــوالــے** :- (چخــروبن+وا+لے)-[اف:پ (قــاموس)- اس-مــذ] وــــ چخړوبنتوب.

**چخړوبنول** :- (چ+خ+ړو+ب+نْ+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)- مص مت]- اوبړنول- نرمول- اتوب کول.

**چخړوبنونـــګ** :- (چ+خ+ړو+ب+ن+وْ+نْ+ګ)-[اَف:پ (قـــاموس) حمــص] وـــ چخړوبنونه.

**چخړوبنونــــه** :- (چ+خ+ړو+ب+نْ+و+نــه)-[اَف:پ (قـــاموس) حمــــص]- چخړوبنونګ- اوبړنونه- نرمونه- اتوب کونه.

**چخړوبنوُونکے** :- (چ+خ+ړو+ب+ن+وُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)- فـاع-مذ-وا-ج: چخړوبنـوونکي (مـؤ: چخړوبنـوونکې]- اوبړنـوونکے- نرمـوُونکے- اتوب کوونکے.

**چخړوبنېدل** :- (چ+خ+ړو+ب+نې+د+لْ)-[اَف:پ (قـاموس) مـص]- اوبړنېـدل- نرمېدل- اتوب کېدل.

**چخړوبنېدنـــه** :- (چ+خ+ړو+ب+نې+د+نـــه)-[اَف:پ (قـــاموس)-حمــص]- چخړوبنېدۀ- اوبړنېدنه- اتوب کېدنه- نرمېدنه.

**چخړوبنېـدُونکے** :- (چ+خ+ړو+ب+نې+دُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس) مف-مـذ-وا-ج: چخړوبنېـدونکي (مـؤ: چخړوبنېـدُونکې]- اوبړنېـدُونکے- اتـوب کېدونکے- نرمېدُونکے.

**چخړه** :- (چ+خ+ړَه)-[اَف:پ (قاموس) اس-مؤ-وا-ج: چخړې] چخنه چیخے- د پوزې او د سترګو خیرے.

**چخکے** :- (چ+خ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: چخکـي]- کـیخے- ورکـوټے شـان چینـچے چـې د ماشـومانو پـه کونـه کښـې پیـدا کېـږي او خاربنت کوي.

**چخل** :- (چ+خ+لْ)-[پ-مص مت]- تنوېستل- سُوخول- منډل.

**چخلے** :- (چ+خَ+لے)-[پ-مف-مذ-وا-ج: چخلي (مؤ: چخلې]- تنویستلے- منډلے- سُوخولے.

**چخن** :- (چ+خ+نْ)-[پ-اس-مذ-مؤ-وا: چخنه-ج: چخنې]- چیخن.

ــــ سترګې- هغه سرے چې په سترګو کښې ئې چخې وي.

**چخندے** :- (چ+خَ+نْ+دَے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج:چخندي]- تبرۀ شان لرګے چې ګاڼې وغېره پرسپینولے شي.

**چخنه** :- (چ+خْ+نۀ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ] و ـــــ چخنه.

**چخنه** :- (چ+خ+نه)-[پ-حمص]- سوخونه- منډنه- ننه ایستنه.

**چخنــي خبــري** :- (چِ+خَ+نَــې+خ+ب+ري)-[پ-اس-مـؤ-ج] بـدې خبـرې- ښځینوالې خبرې.

**چخـول** :- (چ+خ+و+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-مص مت]- (۱) سُوخول ننـه کـول- منډل. (۲) یو بل سره ښخول- جنګول- ورانول.

**چخـولے** :- (چ+خ+وَ+لے)-[اَف:پ (قـاموس)- مف-مـذ-وا-ج: چخـولي (مـؤ: چخولې] (۱) سُوخولے- منډلے- ننه ایستے. (۲) جنګولے- ښخ کړے.

**چخـوُنکي** :- (چ+خُـوْ+نْ+کي)-[اَف:پ (قـاموس)- فـاع-مـذ-وا-ج: چخُـونکي- (مؤ: چخوُنکې] سُوخوونکے- منډونکے- ننه ایستوُنکے.

**چخونګ** :- (چ+خ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)- حمص]- وـــــ چخونه.

**چخونـه** :- (چ+خ+و+نـه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-چخونګ- سُوخونه- ننـه ایستنه- منډنه.

**چخُوونکے** :- (چ+خ+وُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-فاع-مذ-وا-ج: چخوُونکي- (مؤ: چخووُنکې]. (۱) سُوخوُنکے ننه کوُونکے- منډوُنکے. (۲) یو بل سره ښخوُونکے- جنګوُونکے-ورانووُنکے.

**چخونیـا** :- (چ+خُو+نْ+ړْ+یـا)-[اَف:پ (قـاموس)-ص]-شـلېدلے-زوړ شـوے- مبتلے- دکار نه وتے.

**چخه** :- (چ+خه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج:چخې]- (۱) چخې- چیخې- د سترګو مېل. (۲) کُورې- د سپي د شړلو اواز.

**چخـه کـول** :- (اص)- (۱) چیخـې کـول- چـخ کـول- د سـترګو مېـل کـول- (۲) کُورې کول- سپے شړل.

**چَخه** :- (چَ+خه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-چغه-ناره-نعره-کریغه.

**چخې** :- (چ+خې)-[پ-اس صو]-د سپي د شړلو اواز- کوُرې.

**چخے** :- (چ+خے)-[پ-اس-مذ-وا-ج: چخي]-د سترګو مېل- چخړه.

**چخېدل** :- (چ+خې+د+ل)-[اَف: پ (قاموس)-مص لا]- (۱) سُوخېدل-منډلې کېدل- نته کېدل (۲) ښخېدل.

**چخېدلې** :- (چِ+خې+دَ+لې)-[اَف:پ (قاموس) مف-مذ-وا-ج: چخېدلې-(مؤ: چخېدلې)] (۱) سُوخېدلې-منډلې-نته شوې (۲) ښخېدلې-ښخ شوې.

**چخېدنګ** :- (چِ+خې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و ــــ چخېدنه.

**چخېدنــه** :- (چِ+خې+د+نــه)-[اَف:پ (قــاموس)-حمــص]- (۱) چخېــدنګ-سُوخېدنه-نته کېدنه-منډلې کېدنه. (۲) ښخېدنه.

**چخېــدُونکې** :- (چ+خــې+دُو+نْ+کې)-[اَف:پ (قــاموس)-مــف-مــذ-وا-ج: چخېـدونُکي-(مؤ: چخېـدُونکې)] (۱) چخېدونکې-سُوخېدونکې-نته کېدونکې-منډلې کېدُونکې. (۲) ښخېدُونکې.

**چخېدُونې** :- (چِ+خې+دُو+نې)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: چخېدُوني-(مؤ: چخېدونې)] و ــــ چخېدونکې

**چدام** :- (چ+دا+مْ)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: چدامُونه]- (۱) د تولې آتمه برخه (۲) لږ، څېز-پُوچې شان.

احمدینه چې پینځهٔ ورته پنځوس وي

د هغــه د مال نه دام او چدام مه خوره

**چدې** :- (چِ+دې)-[اَف:پ (قاموس) کلمه-مذ]-چې دې. دا د تکیه کلام په ډول استعمالېږي.

**چَډ** :- (چَ+ډْ)-[اس معرفه-مذ]-په افریقه کښې د یو اسلامي ریاست نوم.

**چډل** :- (چ+ډَ+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چډلونه]-د خوراك نه ډك خاورین ښانك.

**چډوســـکې** :- (چ+ډُو+سْ+س+کْــې)-[اَف:پ (قـــاموس)-اس-مـــذ-وا-ج: چډُوسکي]-چډوکې-د خربوزې یا هندوانې اډوکې.

**چــډوکــې** :- (چ+ډُو+کــې)-[اَف:پ (قــاموس)-اس-مــذ-وا-ج: چــډونکي]و ــ چډُوسکې

**چـــډوکې** :- (چ+ډُو+کــې)-[اَف:پ (قــاموس)-اس-مــذ-وا-ج: چــډُوکي]و ــ چډُوسکې

**چــر** :- (چ+ر)-[اپ-اس صو-مذ]- (۱) د چرچڼ یا مرغۍ اواز. (۲) د کپړې د شنونو اواز.

**چَر** :- (چَ+رْ)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: چرُونه]- (۱) طرز-عادت-

کــه ســړې د جهان واړه علم وکا

چې د دهٔ د عمل چر نهٔ وي هم هېڅ خوشحال

(۲) چار-کار. (۳) سېلابي خاوره. (۴) د سخا اُوبونالې-چرۍ.

**چَړ** :- (چَ+ړ)-[اپ-اس]-چېړې-چېرته کوُم ځای.

زړهٔ چې تا سره یاري کړي

مــلامت بــه اوسـي چړق (خوشحال)

**چرار** :- (چ+را+رْ)-[اپ-اس صو-مذ]-د چرچڼو یا د مرغو د چر چر اواز.

**چراسپه** :- (چ+را+سْ+پَـه)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مؤ]-داُوبښ د بـار پـه خاص ډول د تړلو طریقه.

**چراسپه کول** :- (اَف) اس-دا وبښ بار په خاص ډول تړل.

**چراغ** :- (چ+را+غْ)-[فا-اس-مذ-وا-ج: چراغونه]-ډیوه شمع-

غوره کړې ئې پتنګ غوندې پر سومې دې

روغ پــه څــهٔ ځــم ستا د میــنې لــه چراغ (علي خان)

**چراغان** :- (چ+را+غَا+نْ)-[فا-اس-مذ]-شمعې بلول-ډیوې بلول-د څهٔ خوشي په موقع ډیوې یا رنګا رنګ بلبُونه بلول.

**چراګاه** :- (چ+را+ګا+هْ)-[فا-اس-مؤ]-ورشو-د مال څرولو ځای.

**چــراوې** :- (چ+را+وې)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: چـراوي]د سـترګې ګاټې.

**چرائي** :- (چ+را+ئي)-[ه-اس-مؤ] (۱) د لرګي د څیرلو مزدوري. (۲) د لرګي د څیرلو کار.

**چــر بانګ** :- (چ+رْ+بـا+نْ+ګْ)-[اپ-اس-مـذ]-سـحر-د چـرګ بانګ وخت-د شپې اخري پار.

**چر بانګې** :- (چ+رْ+با+نْ+ګې)-[اپ-اس-مذ]-پړشمې-پېسمې-پېشمنې-چربانګ.

**چربل** :- (چ+رْ+بَ+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چربلونه] د آس جلب چې د سپېنسونه جوړېږي.

**چَربُور** :- (چَ+رْ+بُو+رْ)-[اپ (صوابي)-اس] ټول-غونډ.

**چَربُـوړې** :- (چَ+رْ+بُـو+ړې)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: چربـوړي]-بوټۍ-د غوښې چم.

**چَربونـډي ایسـتل** :- (چَ+رْ+بـو+نْ+ډي+اي+سْ+تْ+ل)-[اپ-اص]-څـهٔ کـار پـه تسلۍ سره کول-په جمع زړهٔ کار کول.

**چَربه** :- (چَ+رَ+بَه)-[فا-اس-مؤ] خاکه-نقل.

**چَربي** :- (چَ+رْ+بِي)-[فا-اس-مؤ] وازده-وازګه-ډل-شله-غوړوالې.

**چــرت** :- (چ+ر+تْ)-[اپ-اس صـو-مـذ] (۱) چـرګ-د اُوبـو داده. (۲) د تُوکـاڼې تُوکلو اواز.

**چرت وهل** :- (اص) (۱) تُوکاڼې تُوکل. (۲) د اُوبو داده وتل.

**چرت** :- (چْ+رُ+تْ)-[اپ-اس-نه] خیال-تصور-خوش طبعي.

**چرتا** :- (چْ+ر+تا)-[اپ-اس صو-مؤ]-د چرت چرت اواز-د تُوکاڼو تُوکلو اواز.

**چَرته** :- (چَ+رْ+تَه)-[اَف:پ (قاموس) اس-مؤ-وا-ج: چرتې]-څېره-رنګ.

**چېرتـه** :- (چ+ر+تـه)-[اپ-مـؤ]-چېرې چـر-کُـوم ځـای-چېـرې-چېتـه-متـل: چېرته ډب هلته ادب.

**چُرټ** :- (چُ+رَ+ټْ)-[اُر-اس-مذ] سګار-یو قسم سګرټ.

**چُرَټـه** :- (چُ+رْ+ټَـه)-[اپ (ظفـر)-اس-مـؤ-وا-ج: چُرټـې]-ایلـۍ یـوه وړه شـان مرغابۍ.

**چَرچ** :- (چَ+رْ+چْ)-[اُنګ-اس-مذ-وا-ج: چرچُونه]-ګرجا-ګلجه-د عیسـایانو د عبادت ځای.

**چرچا** :- (چ+ر+چا)-[ه-اس-مؤ] مشهوري-شهرت.

**چرچــر** :- (چ+رْ+چ+رْ)-[اپ-اس صـو-مـذ]- (۱) د چـر چڼـو اواز. (۲) فضـول خبرې-عبث خبرې.

**چرچر کول** :- (اص) (۱) د مرغو چڼېدل. (۲) عبث خبرې کول-فضول رغېدل.

**چَر چَر** :- (چَ+رْ+چَ+رْ)-[اپ-کلمه-مذ]-خرخر-اُوبښ تـه د اُوبـو ورکولـو پـه وخت دا کلمې وئیلې شي.

**چرچــرک** :- (چ+رْ+چ+رَ+کْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-(مـؤ-وا: چرچرکـه-ج: چرچرکې)] چرچـرې-هغــه ســړې چــې عبــث خبــرې کــوي-فضــول رغېدونکې.

**چرچرې** :- (چ+رْ+ج+رَې)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ] و ــــ چرچرك.

**چــرچڼ** :- (چ+رْ+چ+نْ+ړ)-[اپ-اس-مــذ-وا-ج: چرچڼـان-(مـؤ-وا: چرچڼـه-ج: چرچڼې)]- (۱) یو قسم مرغۍ. (۲) د خالي ورځ-چڼ چڼ-اول سبق.

**چرچـوبۍ** :- (چ+رْ+چـو+بۍ)-[اپ-اس-مؤ]-غسـلخانه-چرچـوبۍ. د لامبېـدلو کوټۍ.

چې ډکې په ښو مشکو په عنبرو هغه خولې وې
بــدبـویه چرچوبي د زمانې په انقلاب شوې (خوشحال)

**چَرچور** :- (چَ+رْ+چُو+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] (۱) شور زوږ- (۲) تباه او برباد.

**چَرچو کول** :- (اَف) اص- (۱) شور زوږ کول (۲) تباه او برباد کول.

**چرچـورکی** :- (چ+رْ+چـُو+رْ+کيْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـؤ]- چرچـورۍ یـو قسم چینجی چې د شپې په وخت د چرچر اواز کوي- کیرړے.

**چرچُورۍ** :- (چَ+رْ+چُو+رَيْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ] و ـــــ چرچُورکی.

**چرچُونګۍ** :- (چ+رْ+چُو+نْ+ګيْ)-[اپ-اِس-مؤ]-یوه مرغۍ.

**چرخــــول** :- (چَ+رْخْ+و+لْ)-[اَف:پ (قـــاموس)-اِس-مـــذ -وا-ج: چرخولُونـــه] چارخول- د چرګ ځونډړے یا پرېره.

**چرخولے** :- (چ+رْ+خو+لے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج:چرخولي] د دېګ د سرپوښ لاستے- د سرپوښ مُوټے.

**چرخــه** :- (چَ+رْ+خَـه)-[فـا-اِس-مـؤ-دا-ج: چرخـې]-څرخـه- د سپنـسـي د غنبنتلو آله.

**چرخه کول** :- (اص-په څرخه سپنسي غنبتل.

**چرخي** :- (چ+رْ+خيْ)-[اپ-اِس-مؤ] (۱) هغـه لـرګـے چې د ګـوډۍ تـار پـرې را څرخولے شي. (۲) د ضرب نشان (×).

**چرخي کول** :- (اص-غلطول-د غلط نخښه پرې لګول.

**چَرخېـړه** :- (چَ+رْ+خـې+ړَه)-[اپ (وز)-اِس]-چُوسـتـے- تُـور تـوړے- کشـکول- څخکوړے-کشکوړے.

**چَـرړوت** :- (چَ+رْ+ړُو+تْ)-[اَف: پ (قـاموس)-اِس-مـذ]- (۱) د بټېـر یـا مـرز د کـرچ کُـرچ اواز چې پـه لاس کنبـې نیولـو پـه وخت ئـې اوباسي. (۲) د کمزوري سړي د نۀ زړۀ خبرې.

**چَرړوت ورته کول** :- (اَف) اص-د کمزوري سړي د مضبوط سړي په مخکښې خبرې کول.

**چرړُوکے** :- (چ+رْ+ړُو+کے)-[اپ (ب،خ)- اِس-مذ-وا-ج: چرړُوکي] د ایـوې هغـه ورکوټې شـان لـرګـے چې پـه درمـه، کنبـې لګېـدلے دیـاوړد غـټ پـړے پـه کنبـې ننبلولے شي.

**چړه** :- (چِ+رْ+ړَه)-[اپ-اِس-مؤ-وا-ج: چړې]- څیره-لته- زړه رنجه.

څو به ئې نغارم په چړه کنبې
هـېـڅ پـرې نـۀ پـوهېږم زۀ (علي خان)

**چـرړے** :- (چ+رْ+ړَے)-[اپ (وز) اِس-مـذ-وا-ج: چـرړي]-چـوړے-څـوررړه-یـوه خړه مرغۍ چې لکۍ ئې اُوږده وي.

**چرس** :- (چَ+رْ+سْ)-[اپ-اِس-مذ] د نشې څیز چې په چیلم یا په پونګي څنبلے شي.

**چَرسـي** :- (چَ+رْ+سيْ)-[اپ-اِس-مـذ-وا-ج:چرسـیان] (۱) د چرسـو پـه څنبـلـو عادت (۲) کاواك.

**چَرسي کول** :- (اص)-(۱) د چرسو په څنبلو عادت کول (۲) کاواك کول.

**چَرسي کېدل** :- (اص)- (۱) د چرسو په څنبلو عادت کېدل. (۲) کاواك کېدل.

**چرغ** :- (چ+رْ+غْ)-[ه-اِس-مذ] (۱) د ټپوس په څېر یو ښکاري مارغـۀ چې لکۍ ئې سپینه وي. (۲) چنګ.

**چرغړه** :- (چ+رْ+غَ+ړَه)-[اپ (کن) اِس-مؤ-دا-ج: چرغړې]-قهقهه- په زوره خندا.

**چرغـزه** :- (چ+رْ+غَ+زه)-[اَف: پ (قـاموس)-اِس-مـؤ-وا-ج: چرغـزې] یو قسم د اُوبو توره مرغۍ چې منبوکه ئې سپینه وي.

**چرغګ** :- (چ+رْ+غَ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)- اِس-مذ] چربانګ- د سحر وخت- د چرګ د بانګ وخت.

**چَرغـو** :- (چَ+رْ+غـو)-[اَف: پ (قـاموس)-اِس-مـذ] یو بُـوټے چې شـین ګلے ورته وائي.

**چرک** :- (چ+ر+كْ)-[اَف: پ (قاموس) اِس صو-مذ] و ــــــ چِرْت.

**چرکلے** :- (چَ+رْ+كَ+لے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-یو قسم شینکے.

**چرکېدل** :- (چ+رْ+کې+ر+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص لا]-د بدن څرمن مېږي مېږي کېدل.

**چرکېدنګ** :- (چْ+ر+کې+دَ+ن+ګ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و ـــ چْرکېدنه.

**چرکېدنه** :- (چْ+ر+کې+د+ن)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- چرکېدنګ-چرکېدۀ- د بدن څرمن مېږي مېږي کېدنه.

**چرکېـدُونکي** :- (چْ+ر+کې+دو+نْ+کـي)-[اَف:پ (قـاموس)-مـف-مـذ]-د بـدن څرمن مېږي مېږي کېدونکي.

**چرکېدۀ** :- (چ+ر+کې+دۀ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و ـــــــ چرکېدنه.

**چـرګ** :- (چ+رْ+ګْ)-[اپ-اِس-مـذ-وا-ج: چرګـان (مـؤ-وا: چرګـه-ج: چرګـې، چرګانې)] (۱) یو قسم کورنے مارغۀ چې بانګونه کوي. متـل: چرګ دیـم خو حلالوه مې مه! (۲) د اَس په تندي کنبې سپین نشان.

**چرګ اذان کول** :- (اص) (۱) د چرګ بانګ وئیـل. (۲) د ځوانۍ علامې ښکاره کېدل- بالغ کېدل.

**چـرګ بانـګ** :- (چرګ+بـا+نْ+ګْ)-[اپ(کن)-اِس-مـذ]-سـحر-د چرګ د بانـګ وخت- چرغګ.

**چرګ برګ** :- (چْ+رَ+ګْ+بْ+رَ+ګْ)-[اپ-ص-مذ-[مؤ: وا: چرګه برګـه-ج: چرګې برګې]- (۱) برګ ترګ-تورسپین. (۲) منافق-دوکه باز- ټګ.

**چـرګ خـالـے** :- (چ+رْ+ګْ+خـا+لـے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-ګـوډلـه- د چرګو ټېږ.

**چرګ بغ** :- (چرګْ+ژَ+غْ یا غَ+ګْ)-[اپ-اِس-مذ]-چرغګ چرګ بانګ.

**چرګ سابه** :- (چرګ+سا+بَه)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس]- پالـك-یـوه مشـهـوره سبزي.

**چرګک** :- (چ+رْ+ګْ+كْ)-[اپ-اِس-مذ]-مُلا چرګك-ګوډې چرګ.

**چرګ مرګو** :- (چرګ+م+ر+ګو)-[اپ-اِس-مؤ]-تمغې-د چرګانو بیماري.

**چرګ ناري** :- (چرګ+نا+رې)-[اپ-اِس-مؤ-ج]-چرګ بانګ-چرغګ.

**چـرګ نـارے** :- (چرګ+نـا+رَے)-[اَف: پ (قـاموس)- اِس-مـذ-وا-ج: چـرګ ناري]-د چرګ مبلمستیا.

**چرګوټے** :- (چ+رْ+ګو+ټے)-[اپ-اِس-مذ-وا-ج: چرګوټي]- چرګوړے-ور کوټے چرګ- چوزے-چرګوچے.

**چرګوچے** :- (چ+رْ+ګو+چے)-[اپ (کن) اِس-مذ-وا-ج: چرګوچي] و ـــ چرګوټے.

**چرګوړے** :- (چ+رْ+ګُو+ړے)-[اپ-اِس-مذ-وا-ج: چرګوړي] و ـــ چرګوټے.

**چرګه** :- (چ+ر+ګه)-[اپ-اِس-مؤ-وا-ج: چرګې-چرګانې]-د چرګ مؤنث متـل: چرګه په ډېران مه ګوره په تبخي کنبې ئې ګوره.

**چرګۍ** :- (چ+رْ+ګيْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ]- (۱) ماده ځناور چې په تندي ئې سپین داغ وي. (۲) د نغرې څلور ګُوټونه. (۳) د ګوډې سترګه.

**چرګے** :- (چ+رْ+ګے)-[اپ-ص-مذ-وا-ج: چرګي (مؤ: چرګۍ)]- (۱) برګ ځناور. (۲) د پېشو په شان یو ځناور.

**چرلاو** :- (چ+رْ+لا+ؤ) -[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ -وا -ج: چرلاوُونه] مشین خانه.

**چُرلائي** :- (چُ+رْ+لا+ئي) -[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] -یو قسم شینکے.

**چُرلټ** :- (چُ+رْ+لَ+ټْ) -]پ-ص-مذ] - بالکل-بېخي- قطعي-

چې ګولۍ ئې د بېلتانهٔ شوه په مالته
پـه یـو ځل ئې ملا ماته کړه چُرلټه (عبدالعظیم)

**چُرلټ لېونے** :- (اِص)-بېخي لېونے-سم پاګل-بالکل لېونے.

**چُرلټ مات** :- (اِص)-بېخي مات-بالکل مات.

**چُرلکے** :- (چُ+رْ+لُ+کے) -[اَف:پ: (قـاموس) اِس-مـذ -وا -ج: چُرلکـي] - (۱) د پېزار پُونده. (۲) د ښځو کچې.

**چُرلنـډه** :- (چُ+رْ+لَ+نْ+ډْ) -[اَف: پ (قـاموس)-اِس-مـذ (مـؤ-وا: چُرلنـډه-ج: چُرلنډې)] سُورلنډے- کمینه-

**چُرلنډے** :- (چُ+رْ+لَ+نْ+ډے) -[پ-اِس-مذ -وا -ج: چُرلنډي] پَرپره.

**چرمباز** :- (چْ+رَ+مْ+با+زَ) -[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ -وا -ج: چرمبازان] -ترمباز- د غوبل اخري غوایائې.

**چرمبکۍ** :- (چ+رْ+م+شْ یا خْ+کۍ) -[پ-اِس-مؤ]چرمبکۍ- څرمبکې.

لا دې دم د چرمبکۍ زده کړے نهٔ دے
وراندې لاس نهٔ کړې د مار لړم مسکن ته (احمد دین طالب)

**چرمبۍ** :- (چ+رْ+م+شئ یا خئ) -[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] و___ چرمبکۍ.

**چَرمک** :- (چَ+رْ+مَ+كْ) -[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ -وا -ج: چرکُمونه] د څرخې د دُوك څرمن

د فـلـك څـرخې په دُوك لکه چرمك کړم
چرمك لاهم غواړه وهٔ شي زړهٔ م سپورد ے (علي خان)

**چرمُوچرک** :- (چ+رْ+مُوْ+چْ+رَ+كْ) -[اَف:پ (قاموس)-اِس-مـذ] (۱) چرمُـوچرے- ډېرپوست شوے (۲) کورنۍ ورکوټې چرمبکۍ.

**چرموچرے** :- (چَ+رْ+مُو+چْ+رَے) -[اَف: پ (قاموس)-اِس-مذ) و_ چرمُوچرك.

**چرموړ** :- (چَ+رَ+مو+ړْ) -[پ (ګن) ص] -پائمال-مبنلے شوے- مروړلے شوے.

**چَرموړل** :- (چَ+رْ+مو+ړ+لْ) -[پ (ګن)-مص مت] - مروړل-چرموړول- مبنل- پائمالول.

**چَرموړلے** :- (چَ+رْ+مو+ړ+لے) -[پ (ګن)-مف-مذ -وا -ج: چرموړلي- (مؤ: چرموړلې)ج- مروړلے-مبنلے ګونځې-پائمال کړے-چرموړلوے.

**چرموړنـه** :- (چَ+رْ+مو+ړ+نه) -[پ(ګن)-حمص] -چرموړونه. مروړنه-مبنـنه- پائمال کونه.

**چَرموړول** :- (چَ+رْ+مو+ړ+و+لْ) -[اَف:پ (قاموس)-مص مت] و___ چرمُوړل.

**چرموړولے** :- (چَ+رْ+مو+ړ+وَ+لے) -[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ -وا -ج: چرموړولي (مؤ: چرموړولې. و____ چرموړلے.

**چرموړوُونکے** :- (چَ+ړْ+مو+ړُو+نْ+کے) -[پ (ګن] -مروړُونکے-مبنـوُنکے-پائمال کوُونکے-چرموړوُونکے.

**چرموړونه** :- (چَ+رْ+مو+ړ+و+نه) -[اَف:پ (قاموس)-حمص] و___ چرموړنه.

**چَرموړوُونکي** :- (چَ+رْ+مو+ړ+وُوْ+نْ+کے) -[اَف:پ (قاموس)-اِس-فاع-مذ -وا - ج: چرموړوُونکي (مؤ: چرموړوُونکې)

**چرمه** :- (چَ+رْ+مَه) -[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] د سپینو زرو د تارونو کار.

**چرمینه** :- (چَ+رْ+مِي+نه) -[پ (ظفر)-اِس-مؤ] د کچې څرمنې د تسمو نه جوړه رسۍ.

**چرنـد** :- (چَ+ر+نْ+دْ) -[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ (مـؤ-وا: چرنـده-ج: چرنـدې)] چرچرے-کړتن-کړتو.

**چرُندک** :- (چُ+ر+نْ+دَ+كْ) -[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ -وا -ج: چرندکان] -چتـے- چترکے.

**چرنګ** :- (چ+رَ+نْ+ګْ) -[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] -یو قسم بُوټے.

**چُرنګے** :- (چُ+ر+نْ+ګے) -[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] -یو قسم مرز یا بټېر.

**چرنۍ** :- (چ+رْ+نئ) -[پ-اِس-مؤ] د بورۍ یا ټاټ لویه ټکړه چې زمینداران په کښې وابښهٔ یا سبزي وړي.

**چروب** :- (چ+رو+بْ) -[پ(مر)-ص-مذ]څورب-مضبوط-غټ-تیار.

**چـروډه** :- (چ+رو+ډه) -[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـؤ-وا -ج:چـروډې] کـوتي- کوندرے-ورکوټے شان د لوبو ډوغل.

**چروک** :- (چْ+رو+كْ) -[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ] - د اوبـو د تقسیم د وخت یو ورکوټے حصه- په شپه او ورځ کښې اَتمه حصه.

**چَره**:- (چَ+رَه) -[پ-اِس-مؤ-وا -ج: چرې] -د ټوپك د کارتُوس وړه شان ګولۍ.

**چرهار** :- (چ+ر+ها+رْ) -[پ-اِس صو-مذ] -د مرغو په یو مخ د چنچُوڼ اواز.

**چرهار کول** :- (اِص-د مرغو په یو مخ چتر چوڼه کول.

**چـرۍ** :- (چ+رئ) -[اَف:پ (قـاموس) اِس-مـؤ] (۱) بادشـاهي جلـوس نشـان(۲) ورکـوټے د بګچے چې څخکوړے لـري. (۳) نـالۍ-لښتے. (۴) ګول غوندې ازغن بوټے.

**چرۍ** :- (چ+رئ) -پ-اِس-مؤ] - د سخا اُوبو نالۍ.

**چَرې /چېرې**:- (چَ+رې) -[پ-کلمه] -چېرتـه-کُوم خوا- کوم پله- کوم ځـا ے- چېرې.

**چرېدلے** :- (چ+رې+ دَ+لے) -[پ-مف-مـذ -وا -ج: چرېـدلي (مـؤ: چرېـدلې)] د مرغانو اواز کړے.

**چرېدنه** :- (چ+رې+د+نه) -[پ-حمص] -د مرغانو اواز کونه- چڼ چڼ کونه.

**چرېـدُونکے** :- (چ+رې+دُو+نْ+کے) -[پ-فـاع-مـذ -وا -ج: چرېـدُونکي- (مـؤ: چرېدُونکې)- اواز کوُونکے مارغهٔ-چنچڼ کوُونکے.

**چریکار** :- (چ+رِي+کار+رْ) -[پ-اِس-مذ -وا -ج: چریکاران] - (۱) دهقان-مزارع- مشـقتي. (۲) نـوکر. (۳) کـارکن-کـارکوُونکے. (۴) د لاتـدینۍ شـونډې وېښتهٔ.

**چَریکے** :- (چ+رِيْ+کے) -[پ (ظفر)-اِس-مذ -وا -ج: چریکي] ورغـومے-کچیکے- پسکورے. لبلے.

**چَرې/چېرې ناچې** :- (چَرې+نا+چې) -[پ-کلمه]چرې نهٔ وي-داسې نهٔ دي- هسې نهٔ وي-نهٔ بایدهٔ.

**چِرې /چېرې نهٔ وي** :- (چېرې+نهٔ،وِي) -[پ-کلمه] -و________ چېرې نا چې.

**چَړ** :- (چَ+ړْ) -[پ-اِس-مذ] - (۱) خبر ګري-دروېزه- د طالبانو ډوډۍ ټولول.

چا لـره په تخت کښېږدي غورۍ د پلاوُونو
چاته په کُوځه کښې برخه ورکاندې له چړ (میان جناب کاکاخېل)

(۲) تېـز او تنـد بـاران. (۳) آبشـار-زاوهٔ. (۴) هغـه خـاورې او شـګې چـې سیندئې پـه سېلاب کښـې راوړي او جمع شـي. (۵) د سېلاب لاړه. (۶) قتل عام. (۷) د کباب د پخېدلو اواز. (۸) د مندانو د مېنځ غټ لرګے.

**چَړ ټولول** :- (اِص)-چړ کول-خېر غوښتل- ډوډۍ ګړدول.

**چَړ کول** :- (اِص)- و________ چړټولول.

**چَړ په ایستل** :- (اَف-اِص-چړ په ګډول- قتل عام کول- د سېلمې وژل.

**چړ په ګډول** :- (اَف)-اِص-و-______ چړ په ایستل.

**چړا** :- (چ+ړا)-[اَن:پ (قاموس)-ص-مذ-وا-ج: چړاګان]-(۱) ترټرے چاړا-نیم ژیے. (۳) ساده-کم عقل- (۳) تور مخي بنګړ یوال.

**چړا** :- (چ+ړا)-[اِپ-اِس صوا]- د اُوبو د توئېدو اواز- د تېز باران اواز.

**چړات** :- (چ+ړا+تْ)-[اِپ-اِس معرفه-مذ]- په سوات کښې د یو غر نوم.

**چړاخ** :- (چ+ړا+خ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چړاخونه]ژور پرهر-لوے زخم.

**چړاخ په کښې جوړول** :- (اَف) اِص-لوے زخم په کښې کول. چړاخول.

**چړاخول** :- (چ+ړا+خ+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص مت] لوے زخم په کښې کول.

**چړاخونه** :- (چ+ړا+خَ+و+ن)-[اَف: پ (قاموس)-حمص]-لوے زخم په کښې کونه.

**چړاخوُونکے** :- (چ+ړا+خُ+وُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-فاغ-مذ-وا-ج: چړاخوونکي (مؤ: چړاخوونکې)-لوے زخم په کښې کوونکے.

**چړاخېدل** :- (چ+ړا+خې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص لا]- زخمي کېدل- پرهرژلے کېدل- چړاخ کېدل.

**چړاخېدنه** :- (چ+ړا+خې+د+نه)-[اَف:پ (قاموس) حمص]- زخمي کېدنه زیات پرهرژلے کېدنه.

**چړاخېدونکے** :- (چ+ړا+خې+دُو+ نْ+کے)-[اَف: پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: چړاخېدونکي-(مؤ: چړاخېدُونکې] زخمي کېدونکے. زیات پرهرژلے کېدونکے.

**چړانشے** :- (چ+ړا+نْ+شے)-[اِپ-اِس-مذ]-په دُوپجنه ډوډۍ جمع شوے پشم.

**چړانګو** :- (چ+ړا+نْ+ګو)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-د باد رنګو او خربوزو وغېره جرړې.

**چړاو** :- (چ+ړا+ؤ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]-قتل عام-په سیلمې وژل- چړ.

**چړاو په ګډول** :- (اَف)-اِص-د سیلمې وژل- قتل عام کول.

**چړاوه** :- (چ+ړا+وَه)-[اَف: پ (قاموس)-اِس-مؤ]-د کاریز یا بند د ترلو نه پس چې لږې لږې اوبۀ د دریاب نه راځي.

**چړاوے** :- (چ+ړا+وَے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ- (مؤ: چړاوې)]- د سترګې غُنډاوے.

**چړپ** :- (چ+ړ+پ)-[اِپ-اِس صوا]-(۱) د اُوبو د توئیدو اواز- چړپے- چړپا. (۲) د شونډو د یو ځاے کېدو اواز چې د څۀ خوږ څیز د خوړلو یا د ښکلولو په وخت راوځي.

**چړپا** :- (چ+ړ+پا)-[اِپ-اِس-مؤ]- و______ چړپ.

**چړپن** :- (چ+ړ+پ+ن)-[اَف:پ (قاموس)-اِس ص-مذ (مؤ-وا: چړپنه-ج: چړپنې)]-(۱) بکواسي-عبث ږغېدونکي. (۲ (د اُوبو نه ډک لوښے چې اوبۀ ترې نه بهر ته توئېږي. چړپند.

**چړپند** :- (چ+ړ+پ+ن+د)-[اِپ-ص-مذ]-و______ چړپن.

**چړپول** :- (چ+ړ+پ+و+لْ)-[اِپ-مص مت]-(۱) په څۀ څیز باند خولۀ یا شونډې وهل-چوپل. (۲) په اوبو کښې په لاس وهلو څپې را پیدا کول. (۳) د اُوبو نه ډک لوښے خوزول چې اُوبۀ ترې بهر توئې شي. (۳) نقصاني کول.

**چړپولے** :- (چ+ړ+پ+وَ+لے)-[اِپ مف-مذ-وا-ج: چړپولي (مؤ: چړپولې)] (۱) څۀ څیز په خولۀ یا شونډو چوپکے. (۲) څۀ لوښے داسې خوزولے چې اوبۀ ترې نه راتوئې شي.

**چړپونګ** :- (چ+ړ+پ+و+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)- حمص] و______ چړپونه.

**چړپونه** :- (چ+ړ+پ+و+نه)-[اِپ-حمص]-(۱) چړپونګ-په څۀ څیز باندې خولۀ یا شونډې وهنه- چوپنه (۲) په اُوبو کښې په لاس وهلو څپې پیدا کونه. (۳) د اوبو نه ډک لوښے داسې خوزونه چې اوبۀ ترې نه توئې شي.

**چړپوُونکے** :- (چ+ړ+پ+وُو+نْ+کے)-[اِپ-فاغ-مذ-وا-ج: چړپوُونکي (مؤ: چړپوُونکې)]-(۱) په څۀ څیز باندې خولۀ یا شونډې وهُونکے چوپوُنکے. (۲) اُوبۀ په لاس خوزوونکے. (۳) د اُوبو نه ډک لوښے داسې خوزوُونکے چې اوبۀ ترې نه توئې شي.

**چړپهار** :- (چْ+ړ+پ+ها+رْ)-[اِپ-اِس صو-مذ] چړپا- د چړپ چړپ اواز.

**چړپے** :- (چ+ړ+پے)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]- و______ چړپ.

**چړپېدل** :- (چ+ړ+پې+ د+ لْ)-[اِپ-مص لا]-(۱) په خولۀ یا شُونډو کښې چوپلے کېدل (۲) په لاس خوزولو اُوبو کښې څپې پېدا کېدل. (۳) څۀ لوښے داسې خوزېدل چې اُوبۀ ترې نه توئې شي.

**چړپېدلے** :- (چ+ړ+پې+دَ+لے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چړپېدلي (مؤ چړپېدلې)] (۱) په خولۀ یا شونډو کښې چوپلے. (۲) په لاس خوزولو سره اوبۀ توئې کړے.

**چړپېدنګ** :- (چ+ړ+پې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و___ چړپېدنه.

**چړپېدنه** :- (چ+ړ+پې+د+نه)-[اِپ حمص]-(۱) چړپېدنګ-چړپېدۀ- په خولۀ یا شونډو چوپلے کېدنه. (۲) په لاس خوزولو سره د لوښې نه اوبۀ توئېدنه.

**چړپېدُونکے** :- (چْ+ړ+پې+دُو+نْ+کے)-[اِپ-مف-وا-ج: چړپېدونکي (مؤ: چړپېدونکې)-(۱) په خولۀ یا شونډو کښې چوپلے کېدونکے. (۲) په لاس خوزولو سره په اوبو کښې څپې پیدا کېدُونکے.

**چړپېدۀ** :- (چ+ړ+پې+دۀ)-[اِپ-حمص]- و______ چړپېدنه.

**چړت پړت** :- (چْ+ړ+تْ+پْ+ړ+تْ)-[اِپ-اِس ص-مذ (مؤ-وا: چړ ته پړته-ج: چړتې پړتې)]-غوړپړ-ډېر غوړ.

**چړتُون** :- (چَ+ړ+تُو+نْ)-[اِپ-اِس مذ]-تبکه-د تُورې یا چاړې نیام

چې تُوره وکارې چړتون کې خال
غنیم ئې کله کړي په تُوره سیالي (تایمني)

**چړچکه** :- (چَ+ړ+چَ+که)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-مالـه-د سادین د لُوټو ادارولو یواوزار.

**چړچکې** :- (چ+ړ+چ+کې)-[اِپ-اِس صوا]-تارې-لاس ټکونه.

**چړچکې وهل** :- (اِص-تارې وهل-لاس ټکول.

**چړچوبک** :- (چ+ړ+چو+ب+کْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ- (مؤ-وا: چړچوبکه-ج: چړچوبکې)]چړچوبن-اوبړن-اوبلن.

**چړچوبن** :- (چ+ړ+چو+ب+نْ-اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ (مؤ-وا: چړچوبنه-ج: چړچوبنې)] و______ چړچوبک.

**چَړچوبه** :- (چ+ړ+چر+بَه)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ]-هغه روټۍ چې یو طرف ئې غوړ وي.

**چَړچوبۍ** :- (چَ+ړ+چو+بۍ)-[اِپ-اِس-مؤ]- و______ چَړچوبۍ، غسل خانه، د لمبلو ځاے.

**چړچې** :- (چَ+ړ+چې)-[اِپ-اِس-مؤ-وا-ج: چړچې]-(۱)چړچا- عېش عشرت. (۲) فضول خرڅي.

**چړچې کول** :- (اِص-(۱) عېش کول. (۲) فضول خرڅي کول.

**چړچې و بوزه کول** :- (اَف) اِص-عېش کول.

**چَړچي** :- (چَ+ړ+چي)-[اِپ-اِس ص] عیاش فضول خرڅ.

**چرپوټ** :- (چ+رُ+پُو+ټ)-[اَف-پ (قاموس)-اِس-مذ] و________ چرپُو

**چرغــه** :- (چَ+رْ+غَـه)-[اَف:پ (قـاموس) اِس-مـؤ]-تېـرهٔ کـاڼـې چـې شـپانهٔ د ضرورت په وخت کړې بيزې پرې حلالوي.

**چرق** :- (چْ+رَ+قْ)-[اِپ-اِس صو-مذ]-(۱) د اُوبو يا د بلې نرمې مائع په مزکه د غورزېدلو اواز-چرك. (۲) شرق-تېزاو تُند باران. (۳) افت-مصيبت.

**چرک** :- (چ+رَ+كْ)-[اِپ-اِس صو-مذ]-(۱) د لرګي د ماتېدو اواز. (۲) د اُوبو يا د بل نرم څيز په مزکه دراپرېوتو اواز. (۳) د دروازې تمبه.

**چرکاو** :- (چَ+رْ+کا+ؤ)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج: چرکاوونه]-چنکاؤ-د اُوبو پاشـل، شينل يا شيندل.

**چرکاوول** :- (چ+رْ+کا+و+و+لْ)-[اِپ-مص مت]-چنکاوول-چرکاؤ کول-اُوبهٔ پاشل يا شيندل.

**چَرکاوونه** :- (چَ+رْ+کا+و+و+نه)-[اِپ-حمص]-چنکاوونه-چرکاؤ کونه-د اوبهٔ پاشنه يا شيندنه.

**چرکه** :- (چْ+ر+که)-[اِپ-اَس-مؤ-وا-ج: چرکې]-څريکه-چريکه- درد.

**چرکه کول** :- (اص)-څريکه-چريکه درد کول.

**چرکي** :- (چ+ر+کيْ)-[اِپ-اِس-مؤ]اوړه چاړهٔ.

**چَرکے** :- (چَ+رْ+کے)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج: چرکي]-چاقو.

**چرګے** :-(چ+ر+ګے)-[اِپ (سو)-اِس تصغير]هغه ځاے چې لربې اُوبهٔ په کښې بهېږي.

تپه: د دريابُونو لامبوزن وُم
د بېلتانهٔ چرګي مې مات کړل زنګونه!

**چرنګ** :- (چ+رُوْ)-[اَف:پ (قـاموس) اِس-مذ] (۱) يو خـر رنګے مـرغے چـې د کونترې نه ور کوتې وي او لکۍ ئې اُوږده وي. (۲) ناراسته او بې همتـه سړے. (۳) چرې خبر غوښتُونکے.

**چروبے** :- (چ+رو+بے)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج: چروبي]-(۱) آبشار-جروپے. (۲) د پرچون سوداګر.

**چَروبے** :- (چَ+رو+بے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-(مـؤ: چروبـې)] چـروے-رنګسار-نيل ګر-چروبې.

**چروتوب** :- (چ+رُوْ+تو+بْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-بې همتي-ناراستي.

**چـــروس** :- (چَ+رُوْ+سْ)-[اِپ-اِس-مــذ-واج-چرُوســان (مــؤ:وا: چرُوســه-ج: چروسې)-بې همته-خروس- ناراسته.

**چرُوسي** :- (چ+رُوْ+سي)-[اِپ-اِس-مؤ]-بې همتي-خروستوب-ناراستي

نهٔ پرې نرم شو نهٔ کرم شوخ بې شرمه
سترے ناست يم د رقيب د چروسي (علي خان)

**چرول** :-(چ+رَ+و+لْ)-[اِپ-مص مت]-(۱) پاشل-اُوبهٔ لوستل. (۲) په دستو کول.

**چرُونګ** :- (چْ+رُوْ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-صو-مذ] د چرګوټې چينګ چينګ د چرونګا-چرُونګهار.

**چرُونګا** :- (چَ+رُوْ+نْ+ګا)-(اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] و______ چرونګ.

**چرُونګول** :- (چْ+رُوْ+نْ+ګْ+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت] ورُوکي چُوزي چينګول.

**چرونګونـه** :- (چ+رُوْ+نْ+ګْ+و+نـه)-[اَف:پ (قـاموس) حمص] ورُوکـي چـوزي چينګونه.

**چرونګوونکے** :- (چ+رُوْ+نْ+ګ+وُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-فـاع مـذ-وا-ج: چرُونګوونکي-(مؤ: چرونګوونکې) ورُوکے چُوزے چينګوونکے.

**چرونګهار** :- (چ+رُوْ+نْ+ګ+ها+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] و__ چرُونګ.

**چرونګهار کول** :- (اَف) اص-د چُوزو چينګ چينګ کول.

**چرُونګے** :- (چْ+رُوْ+نْ+ګے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-لربې اوبهٔ.

**چرُونګېدل** :- (چْ+رُوْ+نْ+ګې+د+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-مص لا] د چُوزو چينګ چينګ کېدل.

**چرُونګېـــدلے** :- (چْ+رُوْ+نْ+ګـې+دَ+لے)-[اَف:پ (قـاموس)-مـف-مـذ-دا-ج: چرُونګېدلي (مؤ: چرُونګېدلې) چُوزے چينګېدلے.

**چرُونګېدنــه** :- (چْ+رُوْ+نْ+ګـې+د+ن)-[اَف:پ (قـاموس)-حمـص] د چُـوزي چينګېدنه.

**چرونګېدُونکے** :- (چ+رُو+نْ+ګې+دُوْ+ن+کے)-[اَف:پ (قاموس)] فـاع-مـذ-وا-ج: چرونګېدونکي (مؤ: چرونګېدُونکې)] چينګ چينګ کوُونکے چُوزے.

**چرونه** :- (چ+رَ+و+نه)-[اِپ-حمص] (۱) پاشنه-اُوبه نوستنه. (۲) په دستو کونه.

**چرُوونکے** :- (چ+رَ+وُوْ+نْ+کے)-[اِپ-فاع-مذ-وا-ج: چرُوونکي-مؤ: چرُوونکې] (۱) پاشونکے-اُوبهٔ نوستونکے. (۲) په دستو کوُونکے.

**چَرووے** :- (چَ+رو+وَے)-[اِپ(کن)-اِس-مذ-وا-ج: چرووپان] و____ چروبے.

**چروے** :- (چْ+رَ+وے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] و_____ چَروبے.

**چره** :- (چ+رَه)-[اِپ-اِس-مؤ-وا-ج: چرې]-چاړهٔ.

تېرکـهٔ وارد علـي خـان چـرې د لېچـو
چې خوبـان پـرې کـاتکے د سـاق لـه لچـې

**چَره** :- (چَ+ره)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] (۱) د دروازې چُونډ. (۲) چاړهٔ.

**چرهـار** :- (چْ+رَ+هـا+رْ)-[اِپ-اِس صـو-مـذ] (۱) د اُوبـو د پرېوتـو اواز. (۲) د مرغانو اواز. (۳) د کباب د پخېدلو اواز.

**چرهار کـول** :- (اص) (۱) د اُوبو پـه پرېوتـو اواز کـول. (۲) د مرغـانو اواز کـول. (۳) د کباب پخېدلو اواز کول.

**چري** :- (چ+رِيْ)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج: چريان]-چرِ ټولوُونکے- هغه طالب يا چنے چې وظيفې غونډوي.

**چري کول** :- (اص) چرِ ټولول. وظيفې راغونډول.

**چري کېدل** :- (اص)-(۱) چرِ ټولېدل. وظيفې را غونډېدل.

**چَريا** :- (چَ+رْ+يا)-[اَف:پ (قاموس)-ص]-اَخته-مشغول-لګيا.

**چريا کول** :- (اَف) اص-اَخته کول-مشغولول-لګياکول.

**چَريا کېدل** :- (اَف)اص-اَخته کېدل-مشغولېدل-لګياکېدل.

**چرياګر** :- (چ+رْ+يا+ګَ+رْ)-[اِپ-اَر: چريا ګهر-اِس-مذ]-هغه ځاے چې قسم قسم ځناور او مارغان په کښې د تماشې د پاره ساتلے شي.

**چريــاؤ** :- (چَ+رْ+يـا+ؤ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چرياوُونـه]-د څپلې د تسمې لکۍ.

**چري توب** :- (چْ+رِيْ+تو+بْ)-[اِپ-اِس-مذ]-د چرکار کول-درويزه ګري.

**چرېدل** :- (چ+رې+د+لْ)-[اِپ-مص لا] (۱) د اُوبو چرچر کـول. (۲) پـه دسـتونو کېدل.

**چرېدنه** :- (چ+رې+د+نه)-[اِپ-حمص] (۱)چرېدهٔ-داُوبو چرچر کېدنه. (۲) په دستونُو کېدنه.

**چرېــدُونکے** :- (چ+رې+دُوْ+نْ+کـے)-[اِپ-مـف-مـذ-وا-ج: چرېـدُونکي (مـؤ: چرېـدُونکې)] (۱) د اوبـو د چرچـر اواز کېـدُونکے. (۲) پـه دسـتونو کېدُونکے.

**چرېدهٔ** :- (چ+رې+دهٔ)-[اِپ حمص]- و_______ چرېدنه.

**چړلېسن** :- (چ+ړې+س+نْ)-[اِپ-اس ص-مذ-(مؤ-وا: چړېسنه-ج: چړېسنې)]-ناپاك سړے-ناولے ګنده او سخا سړے.

**چزول** :- (چ+زَ+و+لْ)-[اِپ (ب) خ)-مص مت]-په غوړو یا تېلو کښې څۀ څیز سُور کول-جزول.

**چزونه** :- (چ+ز+و+نه)-[اِپ (ب، ج)-حمص]-په غوړو یا تېلو کښې څۀ څیز سُورکونه-جزونه.

**چزوُونکے** :- (چ+زَ+وُو+نْ+کے)-[اِپ (ب) خ)-اس فاع-مذ-وا-ج: چزوونکي]-په غوړو یا تېلو کښې څۀ څیز سُور کوُونکے جوزوونکے.

**چزېدل** :- (چ+زې+د+لْ)-[اِپ(ب)، ح)-مص لا] (۱) په غوړو یا تېلوکښې څۀ څیز سُورکېدل یا جزېدل (۲) ترېدل-کړتېدل.

**چزېدنه** :- (چ+زمې+د+نه)-[اِپ (ب)، ج)-حمص]-(۱) په غوړو یا تېلو کښې څۀ څیز سُور کېدنه. جزېدنه. (۲) ترېدنه کړتېدنه.

**چزېدونکے** :- (چ+زې+دُو+نْ+کُے)-[اِپ(ب) خ)-مف-مذ-وا-ج: چزېدونکي] (۱) په غوړو یا تېلو کښې څۀ څیز سُورکېدونکے-جزېدونکے. (۲) ترېدونکے-کړتېدونکے.

**چَس** :- (چَ+سْ)-[اِپ-اِس-مذ] خوند-مزه.

**چَس اَخستل** :- (اِص) خوند اخستل-مزه اخستل.

**چَس ورکول** :- (اَص) مزه ورکول-خوند ورکول.

**چَسپ** :- (چَ-سْ+پْ)-[اِپ (ظفر)-اِس-مذ]-پیوستون.

**چسپان** :- (چَ+سْ+پا+نْ)-[فا-اِس-مذ]-پیوست-نښلے شوے.

**چسپانده** :- (چَ+سْ+پا+نْ+ده)-[اَف:پ (قاموس)-ص] چُست او چالاك.

**چَسپول** :- (چَ+سْ+پَ+د+لْ)-[اِپ (ظفر) مص مت]نښلول-پیوست کول- یو ځائے کول.

**چَسپېدل** :- (چ+سْ+پې+د+لْ)-[اِپ (ظفر) مص لا] نښلېدل-یو ځائے کېدل-پیوست کېدل.

**چُست** :- (چُ+س+تْ)-[فا-اِس-مذ (مؤ-وا: چُسته-ج: چُستې)] (۱) تېز-تند. (۲) تنګ-راکښلے.

**چُستي** :- (چُ+سْ+تِيْ)-[فا-اِس-مؤ]-تېزي-تندي.

**چشپک** :- (چ+شْ+پَ+كْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چشپکُونه] د پوستین د پاسه وژغنه کپړه.

**چَشپیره** :- (چَ+شْ+پې+ړه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] پېرکۍ-بولاني.

**چِشت** :- (چ+شْ+تْ)-[فا-اِس معرفه]-د یو ځائے نُوم.

**چِشته** :- (چ+شْ+ته)-[اِپ-کلمه-مؤ]-څۀ شي ته-څۀ څیز ته.

**چشتۍ** :- (چ+شْ+تئ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] دلري ټوپۍ. (۱) د خېټې برنځ.

**چِشتي** :- (چ+شْ+تِيْ)-[فا-ص] (۱) د چشت اوسېدوُنکے. (۲) په طریقت کښې د صوفیاؤ یوه مشهوره سلسله چې د حضرت خواجه معین الدین چشتي نه را روانه ده.

**چشم** :- (چ+شْ+م)وا-اِس-مذ-وا-ج: چشمان]-سترګه-دیده-ج:

ګوره راته څۀ وائي دا ستا دواړه چشمان
نور عالم نور ښکار کا مونږ د دین او دیامان (خوشحال)

**چشمه** :- (چ+ش+مه)-[فا-اِس-مؤ-وا-ج: چشمې]-(۱) چینه-خزۍ. (۲) د سترګو چشمې.

**چشمې** :- (چ+شْ+ې)-[اِپ-اِس-مؤ-ج]-عینك-د سترګو د دید یا د نمر چشمه.

**چِشے** :- (چ+شَے)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]-یو ازغن بُوټے.

**چشے** :- (چ+شے)-[اِپ-کلمه]-څۀ شے-څۀ څیز.

**چښاک** :- (چ+شا+كْ یا چْ+خا+كْ)-[اِپ-اِس]-ښباك-چښل- ښښل.

**چښتون** :- (چَ+شْ+تُو+نْ یا چَ+خْ+تُو+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چښتنونه]-چړتُون-د تورې یا چاړې تېکه.

**چښکوُرے** :- (چ+شْ یا چ + خْ+کُو+رَے)-[اَف: پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چښکُوري] ښښکُوړے چُوستے-کشکول-کشکوړے-سُنت د کوزې هغه حصه چې اوبۀ پرې اچوي.

**چُښکے** :- (چُ+شْ یا چُ +خْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا]چُوسے-غیږ-ذکر.

**چښل** :- (چ+ش+ل یا چْ+خ+لْ)-[اِپ-مص مت]-ښښل-چشل.

**چښلے** :- (چ+شَ یا چْ+خَ+لے)-[اِپ مف-مذ-وا-ج: چښلي (مؤ: چښلې)] ښښلے-چشلے.

**چښنګ**:-(چ+شَ+نْ+ګْ یا چْ+خَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس) حمص] و ــــ چښنه.

**چښنوکے** :- (چ+شْ+نُو+کے یا چ+خْ+نُو+کے)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]-ورکوټے مشك یا چاګل. چښنوُنکے.

**چښنه** :- (چْ+ش+نه یا چ +خ+نه)-[اِپ-حمص]-چښنګ-ښښنه-چشنه.

**چښوبے** :- (چ+شو یا چ+ خو+بے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-شربت د ښښلو څیز-مشروبه.

**چښوُنکے** :- (چْ+شُو+نْ+کے یا چْ+خُو+نْ+کے)-[اِپ-فاع-مذ-وا-ج: چښوُنکي (مؤ: چښوُنکې)]-ښښونکے-چشُونکے.

**چښوُنکې** :- (چْ+شُو+نْ+کې یا چ+ خُو+ن+کې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-و ــــــــــــ چښوکے.

**چُښے** :- (چُ+شے یا چُ+خے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-سپل اغزے یو ورکوټے ازغن بُوټے چې اُوبۀ ئې د وینې د صفا کولو د پاره ښښلے شي.

**چِښے** :- (چ+شے یا چ+خے)-[اَف:پ (قاموس)-کلمه-مذ]-د څۀ شي مخفف-څۀ شے-څۀ څیز.

**چښتن** :- (چ+شْ+تَ+نْ یا چِ+خْ+تَ+نْ)-[اِپ-اِس-مذ-(مؤ:چښتنه)]-ښښتن-بادار-صاحب-مالك-خاوند.

**چـغ** :- (چ+غ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-(۱) د مرغۍ اواز. (۲) چق چې د کانې نه جوړوي اوپه برانډو یا دروازو کښې ځوړند کېږي. (۳) شور ژوږ. (۴) د مارغانو د نیولو یو قسم جال. (۵) د ورپورې کولو اواز. (۶)دهلکانو د یوې لوبې نوم. (۷) اُوږد.

**چغاته** :- (چ+غا+ته)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: چغاتې]-د لرګي اَس.

**چغار** :- (چ+غا+ر)-[اِپ-اِس صو-مذ] (۱) د مرغانو اواز. (۲) په اُوچت اواز شور.

**چغار وهل** :- (اِص-چغې وهل-نارې سُورې کول.

**چغاره** :- (چ+غا+ره)-[اِپ (ګن)-اِس-مذ-وا-ج: چغارې]-اُوچته چغه-کریغه-ناره.

**چغاره وهل** :- (ګن) اِص-اُوچتې کریغې وهل-چغې وهل- په اُوچت اواز شور کول.

**چغاغه** :- (چ+غا+غه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-یو قسم ترش بُوټے چې په ترشۍ او دوائي کښې استعمالېږي.

**چغال** :- (چَ+غا+لْ)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج:چغالان]-شغال-ګیدړ.

**چغالغار** :- (چ+عا+لْ+غا+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-يو قسم لوبه.

**چغـالکے** :- (چ+غـا+لْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: چغـالکي]-د سترګې پوزې طرف ته ګټې يا چغبنکے.

**چغـالي** :- (چ+غـا+لِيْ)-[اَف:پ (قـاموس) ص](۱) وچـې خرمـانـې. (۲) خـالي مېدان.

**چغالي** :- (اَف-اس- (۱) خرمانۍ وچول. (۲) مېدان خالي کول.

**چغالي کېدل** :- (اَف) اص- (۱) خرمانې وچېدل. (۲) مېدان خالي کېدل.

**چغالي ور** :- (چغـالي+وَ+ر)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]-يـو قسم ورکـوټے د لرګي دروازه.

**چغانه** :- (چَ+غا+نه)-[اپ-اس-مؤ]-سارنده

پـه مـسـتـۍ زمـا پـه رقـص فلـك ګـډ شو

مطرب مست، چغانه مست، دف و مضمار مست (صديق)

**چُغانے** :- (چُ+غا+نے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-دمخ کوتي.

**چغاول** :- (چ+غـا+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چغاولُونـه] (۱) د زنا ناؤ د غاړې يو کالے. (۲) د باز يا بابنې د غاړې کرښه.

**چغبوز** :- (چ+غ+بُوْ+زْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-چغبوز-يو قسم چينجے.

**چغتار** :- (چَ+غْ+تا+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مذ-وا-ج: چغتارُونـه]-د فقيرانـو ملنګانو چمتاره.

**چغتـه** :- (چَ+غ+تـه)-[اپ-اس-مؤ-وا-ج: چغتـې]-د اُوبـو يـو قسم مرغـۍ چې دالوتو په وخت د چغ اواز کوي.

**چغټ** :- (چ+غ+ټ)-[اَف:پ (قاموس) ص] چټ-ناپاك.

**چغچغ** :- (چ+غ+چ+غْ)-[اپ-اس صو-مذ]-شور زوږ-چغ چُغ.

**چغچغ کول** :- (اص-شور زوږکول-چغچغ کول.

**چغ چُوغ** :- (چْ+غْ+چُوْ+غْ)-[اپ-اس صو-مذ] و________ چغچغ.

**چغر** :- (چ+غَ+رْ)-[اَف:پ (قاموس) اس-مذ-(مؤ-وا: چغره-ج: چغرې] هغـه اَس چې د سترګې سپين ئې غټ او شين بخن وي.

**چغر سترګے** :- (چ+غ+رْ+سْ+ت+رْ+ګے)-[اپ-اس ص-مذ-وا-ج: چغر سترګي (مؤ: چغر سترګې)] چې سترګه ئې چغره، کږه يا ورکوټې وي.

**چغرکه** :- (چ+غ+رَ+که)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مؤ-وا-ج: چغرکې] چغرۍ-يـو قسم بُوټے چې پانې ئې په مزکه پرتے وي-او خړ رنګ ئې وي.

**چغرُو** :- (چَ+غْ+رُو)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چغروګان] غټ ګونګے-لوے ګونګ.

**چغرۍ** :- (چ+غْ+رِۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ] و_________ چغرکه.

**چغړبه** :- (چ+غ+ړ+بَه)-(اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-شورزوږ غوغا.

**چغړبه کول** :- (اَف)-اس- شور زوږ کول- غوغا کول.

**چغړکه** :- (چ+غْ+ړَ+که)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ] پتيرچې-هغه ډوډۍ چې نـهٔ خمبيره وي او نهٔ پتيره وي.

**چَغـړے** :- (چَ-غْ+ړے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ] (۱)چغـزے مغـز لـرونکے (۲) نرم-نازك-زر ماتېدونکے.

**چغزۍ** :- (چ+غ+زَۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-د اکوړ مغز.

**چغزے** :- (چَ+غْ+زَے)-[اپ-اس ص-مذ]-و_________ چغړے.

پـه ظاهر لباس غلـط د سړي مه شه

منځ ئې ګوره چې چغزے دے که متاك (رحمٰن)

**چغ سترګے** :- (چَ+غ+سْ+ت+رْ+ګے)-[اپ-اس ص-مذ-وا-ج: چغ سترګي-(ه ؤ: چغ سترګې)]-هغه سړے چې سترګې نيمې نيمې اړوَي.

**چغشکي** :- (چ+غَ+شْ+کِيْ)-[اپ (ظفر)-اس-ج-د ماشومانو څنې.

**چُغک** :- (چُ+غَ+كْ)-[اپ (ظفر) اس-مذ]-د يو مارغهٔ نُوم.

**چغکے** :- (چ+غ+کے)-[اَف:پ (قـاموس) اس-مـذ] د مارغـانو او د ماشـومانو شور زوږ او غوغا.

**چغکے کول** :- (اَف) اص-د مارغانو او د ماشومانو شور زوږ او غوغا کول.

**چُغل** :- (چُ+غ+لْ)-[اپ-اس-مذ-(مؤ-وا: چُغله-ج:چُغلې]-(۱) چُغـل خور. (۲) هغه غلبېل يا پروېزے چې سوري ئې لوے وي.

**چغلبـازي** :- (چ+غْ+لْ+بـا+زِيْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ]-چُغـل خُـوري-چغل ماري.

**چغلبه** :- (چ+غ+لَ+بَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-چغړبه-شور زوږ- غلبله.

**چغلبه کول** :- (اَف)اص-چغړبه کول-شور زوږکول-غلبله کول.

**چُغلخــور** :- (چُ+غ+لْ+خـو+رْ)-[اپ اس ص-مـذ-(مـؤ-وا: چغلخـوره-ج: چُغلخورې)] چغلمار-غماز.

**چغلخوري** :- (چُ+غ+لْ+خو+رِيْ)-[اپ-اس-مؤ]-چغلماري-چُغلي-غمازي.

**چُغلمار** :- (چُ+غ+لْ+ما+رْ)-[اپ-اس ص-مذ-وا-ج: چغلماران (مؤ: چغلمـاره-ج: چغلمارې)]- و_________ چُغلخور.

**چُغلماري** :- (چُ+غ+لْ+ما+رِيْ)-[اپ-اس-مؤ]- و_______ چغلوري.

**چُغله** :- (چَ+غ+له)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-د څهٔ څيز د سارهٔ اوږدهٔ اندازه.

**چُغلي** :- (چُ+غْ+لِيْ)-[اپ-اس-مؤ]-و________ چُغلخوري.

**چُغلي کول** :- (اص-چُغلخوري کول-غمازي کول.

**چغماچغ** :- (چ+غْ+ما+چ+غْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مذ]-(۱) د بانبې چغ لوبـه. (۲) د لرګي اَس.

**چغمــټ** :- (چ+غْ+مَ+ټْ)-[اَف:پ (قــاموس)-اَس-مــذ (مــؤ-وا: چغمتـه-ج: چغمتې)]-چغمتېن-غټ-څورب.

**چَغمتېن** :- (چَ+غْ+م+ت+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ] و_____ چغمټ.

**چغمته** :- (چَ+غْ+مَ+ته)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-سخته پتيره ډوډۍ.

**چغمغـي توپـك** :- (چ+غْ+م+غِي+تـو+پَ+كْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس ص-مـذ]-چقماقي توپك.

**چغنے** :- (چَ+غَ+نَے)-[اَف:پ (قـاموس) اس-مـذ] يـو قسـم د اُوبـو څـارے چې دزانې په شان اُوږده مرۍ لري.

**چُغنے** :- (چَ+غْ+نَے)-[اپ-اس-مذ-وا-ج:چغني]-ګانې-څرخه.

**چغنے وال** :- (چغـنے+وا+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ]-ګـانې والـه-د څرخې واله.

**چغوړ** :- (چ+غْ+و+ړْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ] د بېړيو يوه لوبه.

**چغول** :- (چ+غ+و+لْ)-[اپ-مص مت]-(۱)چغ چغ اواز پرې کول. (۲) تنګول.

**چغولے** :- (چ+غ+وَ+لے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: چغـولي-(مؤ:چغـولے)] (۱) چغ چغ اواز پرايستلے. (۲) تنګ کړے.

**چغُولي** :- (چُ+غُوْ+لِيْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-چُغلي.

**چغُونـدے** :- (چ+غُـو+ن+دَے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-ج: چغونـدي]-هغـه لرګے چې ګاځې پر صفا کولے شي.

**چغونا** :- (چ+غُو+نْ+را)-[اَف:پ (قاموس)-ص] ژاوله-ژوغله.

**چغونګ** :- (چ+غ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و_______ چغونه.

**چغونه** :- (چ+غ+و+ن)-[اپ-حمص] (۱) چغ چغ پرکونه. (۲) تنګونه.

**چغوُونکے** :- (چ+غ+وُو+نْ+کے)-[اپ-فاع-مذ-وا-ج: چغوُونکي (مؤ: چغـوُونکے)] (۱) چغ چغ پرې کوُونکے. (۲) تنګوُونکے.

**چغه** :- (چَ+غه)-[اپ-اِس-مؤ-وا-ج: چغې]-د سپي د کُورې کولو اواز.

**چغه کول** :- (اِص) سپے کُورې کول-سپے شړل.

**چغه** :- (چ+غه)-[اپ-اِس-مؤ-وا-ج: چغې]-(۱) کریغه-کریکه-ناره-اُوچت اواز. (۲) چیغه-هیه-په چا پسې وتنه.

نۀ ئې پرېږدي ځوك په خپل وطن کښې
چـغـه د خلقو را پسې راپسې سمه ده (حافظ عبدالعظيم)

**چغه کول** :- (اِص)-(۱) ناره کول-اُوچت اواز کول. (۲) هیـه کول-چغـه ګډول. چغه ويستل.

**چغه ګډول** :- (اِص) و________ چغه کول. (۲)

**چغه وهل** :- (اِص)-ناره کول-کریکه کول-اُوچت اواز کول.

**چغه ويستل** :- (اِص) و________ چغه کول (۲)

**چغهار** :- (چ+غ+ها+رْ)-[اپ-اِس صو-مذ] (۱) د ځرخ یا دروازې پرلـه پسې اواز. (۲) تېز او اُوچت اواز.

**چغهار کـول** :- (اِص) (۱) د ځـرخ یـا د دروازې پرلـه پسې اواز کـول. (۲) تېـز او اُوچت اواز کول.

**چغې** :- (چ+غې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-چندرې-چندرو-د ماشومانو يوه لوبه.

**چغے** :- (چ+غے)-[اپ (ظفر)-اِس-مذ]-تنګ سترګے-چغر.

**چغـې تنـدے** :- (چ+غـې+تَ+نْ+دَ ے)-[اَف:پ (قـاموس) اِس-مـذ]-د ماشومانو يوه لوبه.

**چغې تندے کول** :- (اَف) اِص-د ماشومانو لوبه کول.

**چغېدل** :- (چ+غې+د+لْ)-[اپ مص لا]-(۱)شور زوږ کول-چغ چغ کول. (۲) د مرز د جنګ په وخت کښې د چغ اواز کول. (۳) په چغو چغو ژړل.

**چغېدلے** :- (چ+غې+د+لے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: چغېدلي (مؤ: چغېدلې)] (۱) په چغو چغو ژړېدلے. (۲) د مرز چغ اواز کړے.

**چغېدنګ** :- (چ+غې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص) و____ چغېدنه.

**چغېدنـه** :- (چ+غې+ر+نـه)-[اپ-حمـص] (۱) چغېـدنګ-چغېـدۀ-شـور زوږ کونه.(۲) په چغـو چغـو ژړنـه. (۳) د مـرز د جنګ پـه وخت د چغ اواز کونه.

**چغېـدُونکے** :- (چ+غـې+دُو+نْ+کے)-[اپ-فـاع-مـذ-وا-ج: چغېـدونکي (مـؤ: چغېدونکې)]-(۱) شور زوږ کوُونکے. (۲) په چغـو چغو ژړوُونکے. (۳) مـرز د جنګ په وخت د چغ اواز کوُونکے.

**چغېدۀ** :- (چ+غې+دۀ)-[اپ-حمص] و________ چغېدنه.

هغه طوطي چې چغېدۀ چغار اوس ولې نۀ کا
مرګي ئې مُهر په خولۀ وواهۀ ګویا به نۀ شي (حافظ الپوري)

**چغې مير** :- (چ+غې+مي+ر)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-د پښتنو د لښکر هغه ملي مشر چې د جنګ په وخت کښې د ډول په ذريعه خپلو خلقو ته خبرې او حکم ورکوي.

**چُف** :- (چُ+ف)-[اپ-اِس-مذ] دم-پُوکے.

**چف کول** :- (اِص-دم کول-پُوکے ورکول.

**چف کېدل** :- (اِص-دم کېدل. پُوکے کېدل.

**چُف چُف** :- (چ+فْ+چُ+فْ)-[اپ]-د دم کولو اواز.

چـې پـه مـا د صبر دم لولې ناصحه
خپله خولۀ سترې کوې په دا چُف چُف (حميد)

**چِق** :- (چِ+قْ)-[اتُر-اِس-مذ-وا-ج: چقونه]چك-دکړکو يا کانو د تيلو نه جوړه پرده.

**چَقړ** :- (چَ+قُ+ړْ)-[اپ (ظفر) اِس-مذ]-چغر-هغه سړے چې يوه سترګه ئې ړنده يا ورانه ويجاړه وي.

**چقړوبه** :- (چَ+قْ+ړو+بَه)-[اپ (سو)-اِس-مؤ]-چيکړې او اُوبۀ- نرمه ګاره.

**چقړه** :- (چ+قَ+ړه)-[اپ-اِس-مؤ-وا-ج: چقړې)-چيکړه-ختې چکړ- جګړاو.

اوس د صبر کـڼاوې را لـړه بـويه
چې چقړې د هجران تر زنګانۀ شوې (علي خان)

**چُقړه** :- (چُ+ق+رَه)-[اپ-اِس-مؤ-وا-ج: چُقړې]-ککره-د چړګې ناڔې.

پـه خندا خندائې اوبنکې ځي د سترګو
لـکـه چـرګـه لـه مستۍ وهي چقړې (خوشحال)

**چقمـاق** :- (چَ+قْ+مـا+قْ)-[اتُـر-اِس-مـذ]-پنـډبکر-يوکـاڼے چې د پنـډ سـره پـه چجګولو بځري ترې نه راوُرې.

**چقندر** :- (چَ+قَ+نْ+د+رْ)-[اَفا-اِس-مذ]-د ټيپرو پـه شـان يـوه سبزي چې چيني تر جوړولے شي.

**چَـک** :- (چَ+کْ)-[اَف:پ (قـاموس) اِس-مـذ-وا-ج:چکونـه]- (۱) د بزې د وژغنـو نه جوړه وړه پرده. (۲) چق. (۳) د مچو يا ډنبرو کـور. (۴) ټك-حمله-پـه غابنُونو چينـه. (۵) لاحقـه چې د ځينې اسمونو اخر تـه راځي. او د صفت معنې پيدا کوي. لکه: سپين چك. حرام چك. (۲) د زمکې يوه لويه ټکړه.

**چَک اچول** :- (اِص) حمله کول. چيچل.

**چَک لګول** :- (اِص)-چيچل.

**چِک** :- (چ+کْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج:چکوُنه] هغـه لرګې چې د کوهي د مضبوطولو دپـاره ئې پـه بېخ کښـې غنـډ کېږدي او هغې د پاسه دېوال خېژوي.

**چِـک** :- (چ+کْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-(۱) د نـه يـا انکـار اواز. (۲) چق-پرده.

**چِـک** :- (چِ+کْ)-[اَنګ-اِس-مذ-وا-ج: چکُونـه]-هُنـډي-هغـه پرچې چې بېنك پيسې پرې ورکوي.

**چِک اخستل** :- (اِص)-د تنخواه، مزدورۍ يـا بـل څـه سودا د پيسو پـه حقله د بينك د پاره کاغذ اخستل.

**چِک کښن کول** :- (اِص)-چك ماتول.

**چِک ليکل** :- (اِص)-د بينک نه د پيسو راويستلو د پاره کاغذ ليکل.

**چِـک مـاتول** :- (اِص) د بينـک نـه د چك پـه ذريعـه پيسـې راويسـتل. چك کښن کول.

**چِک ورکول** :- (اِص)-د بينک نه د پيسو را ويستلو د پاره کاغذ ورکول.

**چکاک** :- (چ+کا+کْ)-[اَف-پ (قاموس)-اِس-مذ]-ځنباك، ځُنبل.

**چَکالے** :- (چَ+کا+لے)-[اپ (ګن) اِس-مذ-وا-ج: چکالي]-د ځرمنې يـا ربـړ هغه ټکړه چې د ورکوټي ماشوم د لاندې اچولے شي چې بستره پـه بولو ناپاکه نۀ کړي.

**چکالے** :- (چَ+کا+لے)-[اپ (مر) اِس مذ-وا-ج: چکالي]-څادر-پټکے.

**چَک په چک** :- (چَ-کْ+پَه+چَ+کْ)-[اپ-اِس]-چك چاپېر-ګېر چاپېر-خـا ے پـه خاے.

په دې دور کښې د ہر خلق
د ستا ملۀ دې چك په چك (حميد)

**چک چا پیر** :- (چ+كْ+چا+پي+رْ)-[پ-اس-مذ]- و ــــــــ چَك په چك.

**چِکچِک** :- (چ-كْ+چ+كْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس صو-مذ]- د خرۀ د شړلو اواز.

**چَکچکه** :- (چ+كْ+چ+كَه)-[پ-اس-مؤ-وا-ج: چکچکې] -تـاړي-لاس ټکونـه-لاس پړقونه-چکچکي.

**چَکچکي** :- (چ+كْ+چ+كْي+كِيْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ] و ـــ چکچکه.

**چکچکي کول** :- (اَف) اِص-تاړي وهل-لاس پړقول-لاس ټکول.

**چکر** :- (چ+كَ+رْ)-[پ-اس-مذ-وا-ج: چکرونه] -(۱) دائره-حلقه (۲) سبل-هوا خوري-بهر ګرځېدنه. (۳) سرګرځېدنه.

**چکر خوړل** :- (اص)-چکر راتلل-سر ګرځېدل.

**چکر راتلل** :- و ــــــــ چکر خوړل.

**چکر لګول** :- (اص) (۱) چکر وهل-بهر ګرځېدل- سبل کول (۲) څوك كتـل-د چا كار كَتل.

**چکر وهل** :- (اص) و ــــــــ چکر لګول.

**په چکر کښې اچول** :- (اص)-حېرانول.

**چکر** :- (چَ+ك+رْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس صو-مذ] چکري-د بـزې د رابللو اواز-چې چې.

**چکري** :- (چ+كَ+رِي)-[اَف:پ (قاموس)-اس] و ـــــــ چکر.

**چکړ** :- (چ+كَ+ړْ)-[پ-اس-مذ-وا-ج: چګړې] و ـــــــ چقړه.

**چکړاؤ** :- (چَ+كْ+ړا+ؤ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ] و ـــــــ چقړه.

**چکړې** :- (چ+ك+ري)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مؤ]چك-د بـزې د وژغنو نـه جوړه پړده.

**چکړي** :- (چَ+كَ+ړيْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس صو-مؤ]ککړې-د چرګې يـا زرکـې ناري.

**چکړي وهل** :- (اَف) اِص- د چرګې يازرکې ککړې وهل.

**چکړې** :- (چِ+كْ+ړے)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مـذ] -کيچړي-هغـه وريژې. چې د مونګو دال ورسره ګډ پاخۀ شي.

**چکَس** :- (چَ+كَ+سْ)-[پ-اس-مـذ]-د ښـکاري مارغـانو خصوصـاً د بـاز د ناستې اډه-چګس.

په سارۀ دې چکس نغښتے په نمدوي
چـې فـارغ وي د سارۀ له هـره شره (خوشحال)

**چکښو** :- (چَ+كْ+ښُو يا ښُوْ)-[پ-اس-مذ]-څکښو-چاکسو-چوخشو.

**چکلاواله** :- (چَ+كْ+لا+وا+لَه)-[پ (سو)-اس ص-مؤ]-د چکلې رنډۍ- د کنځلو په ډول وئيلے شي.

**چکله** :- (چَ+كْ+لَه)-(پ-ه: چکلا-اس-مؤ-وا-ج: چکلې]-د ښـځو د ناستـي هغـه ځاے چې بدکاري په کښې کوي-درنډو بازار.

**چکلـه** :- (چَ+كْ+لَـه)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ-وا-ج: چکلـې]-(۱) طـرف-علاقه. (۲) لړې اُوبۀ. (۳) پتېره ډوډۍ.

**چکله** :- (چَ+كْ+لَه)-[پ (ګن) اس-مؤ]-(۱)د منداڼې د لرګي هغـه سر چې پـه ماتې پروت دي. (۲) د پېړو جوړولو اوار لرګے.

**چکلـې** :- (چَ+كْ+لـيْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ]- (۱) غوړنـد ے-وَل. (۲) د اَرټ لرګے. (۳) د يوې لوښې نوم. (۴) د مخ صفت.

**چَکلي** :- (چَ+كْ+لَيْ)-[پ (سو)-اِس-مؤ-چکري.

**چَکمن** :- (چَ+كْ+مَ+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-ګونځې. کوړيتې.

**چکمه** :- (چَ+كْ+مَه)-[اَف:پ (قاموس) اس-مؤ]-اُوږدۀ بُوټان.

**چکَن** :- (چ+كَ+نْ)-[پ-اس-مذ] کشيده-ګُلکاري-بخيه.

څو سُورے سُورے دستنو په سر نۀ شي
سلامت ټُوکے بـــه هبڅوك چکن نـۀ کا (علي خان)

**چکن کول** :- (اص) کشيده کول-بخيه کول-ګلکاري کول.

هنر مند که تل په روغه ستن چکن کا
علي خان په چاؤد قلم کا کشيده ګفت (علي خان)

**چَکنـا چکنـې** :- (چَ+كْ+نَـا+چَ+كْ+نِيْ)-[پ-ه: چکواچکـوي-اِس] د سـرخاب جوړه-دوه مرغان نر ښځه-د مارغانو يوه جوړه.

د چکنا چکنې بېلتون په نيمه شپه شي
سـتا زمـا پـه مېنځ غماز شو د صبا مخ (رحمٰن)

**چګو** :- (چ+كُوْ)-[اَف:پ (قاموس)-س]-ګڅے-ګڅ لاسے-کيڼ لاسے.

**چکو** :- (چ+کو)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-د وړو ماشُومانو لاس.

**چکـوتره** :- (چَ+كـو+تَ+رَه)-ه-اس-مؤ]-د غټـو نيمبوانـو د ذات يـو قسـم- دا د غټ نيبمو او د نارنج د قلم نه جوړېږي.

**چکـو چکـو** :- (چُ+كو+چُ+كـو)-[اَف:پ (قـاموس)- اِس صـو-مـذ]د سـخي د رابللو اواز.

**چکو چکو کول** :- (اَف)-اص-سخے رابلل.

**چګور** :- (چ+كُو+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-چالاك سړے. خوله ور سړے.

**چکوړ** :- (چْ+كو+ړْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس صو-مذ]-د سخي د شړلو اواز.

**چکوړے** :- (چ+كو+ړَے)-[پ (ګن) اس-مـذ-وا-ج: چکـوړي-چکوړيـان (مؤ-وا: چکوړې-ج: چکوړيانې)] ورکوټے سخے-سخوړے-څکوړے.

**چکوړې** :- (چ+كُوْ+ړې)-[پ-اس صو-مذ]-د سخي دسړلو اواز.

**چکه** :- (چ+كَه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج:چکې] څپېړه.

**چکه کشول** :- (اَف) اص-په څپېړه وهل.

**چکه** :- (چَ+كَه)-[پ-اس-مؤ]-(۱) چکيده-ماستۀ. (۲) پتيره ډوډۍ.

**چکۀ** :- (چْ+كَۀ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]-(۱) د بزې د شړلو اواز. (۲) وز.

**چکۀ کول** :- (اَف) اِص-بزه شړل.

**چکچکه** :- (چِ+كْ+چ+كَۀ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ-وا-ج: چکچکې] غونډه شان ستاره چې په قميص او ټوپۍ د ښکلا د پاره ګنډلے شي-پنې.

**چکه چکه** :- (چ+که+چ+كه)-[اَف:پ (قاموس)-اس صو]-د بزې د رابللو اواز.

**چکه چکه کول** :- (اَف) اص-بزه رابلل.

**چکـه چُـور** :- (چَ+كـه+چُو+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ (مـؤ: چکـه چُـوره)] بدمعاش سړے.

**چکۍ** :- (چ+كَيْ)-[پ-اس-مؤ]-(۱) د ګوړې غنډه شان ټکره يـا روړۍ. (۲) د اُوبو غُور غوړۍ.

**چکۍ دربدل** :- (اص)-چکي کېدل-منزه کېدل.

**چکـۍ کـول** :- (اص) (۱) د ګـورو چکـۍ يـا روړۍ جـوړول. (۲) د اُوبـو غـور غوړۍ کول.

**چکۍ کېدل** :- (اص) (۱) چکۍ دربدل. متره کېدل. (۲) د ګوړې چکـۍ يـا روړۍ جوړېدل.

**چکۍ** :- (چ+كَيْ)-[پ-ه: چکي-اس-مؤ]- مېچن.

**چکۍ ته اچول** :- (اِص)-پـه چکـۍ کښې بنديدل-قېدي د سزا پـه ډول پـه بېلـه

کوټنۍ کښې بندول. او مېچن پرې وړول.

**چکۍ کښې بندول** :- (اِص) و ــــــــــــ چکۍ ته اچول.

**چکۍ وړول** :- (اِص)-په مېچن دانې وړول.

**چکۍ** :- (چ+کۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-لُور.

**چکي** :- (چَ+کيْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] د ماشومانو تاړي وهل-لاس ټکول یا پړقول.

**چکي کول** :- (اَف)-اِص-تاړي وهل-لاس پړقول.

**چکې** :- (چ+کې)-اِپ-اِس صو-مذ] د سخي د شړلو اواز.

**چکې** :- (چ+کې)-اِپ (ګن) اِس صو-مذ]-د اُوزې د شړلو اواز.

**چکیده** :- (چ+کي+دَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: چکیدې]و ـــ چکه.

**چکې سرے** :- (چ+کے+سَ+رے)-[اِپ-اِس ص-مذ]-کوټنۍ هغه لښته چې سر ئې را تاؤ وي.

**چک** :- (چ+کْ)-[اِپ-ص-مذ (مؤ-وا: چکه-ج: چکې)]جګ-لوړ-هسك اُوچت-دنګ.

**چکټ** :- (چَ+کَ+ټْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] پُندانه.

**چکس** :- (چَ+کَ+سْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] و ــــــــــــ چکس.

**چکوچکو** :- (چ+کو+چ+کو)-[اَف:پ (قاموس)-اِس صو-مذ]-د بزې د رابللو اواز.

**چکول** :- (چ+کَ+و+لْ)-[اِپ-مص مت]-(۱) اُوچتول-پورته کول. (۲) پاڅول.

**چکوُن** :- (چَ+کوُ+نْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]-د چنار په شان یوه وُنه چې پاڼې ئې څناور نۀ خوري.

**چکونه** :- (چ+کْ+و+نه)-[اِپ-حمص] (۱) اُوچتونه-پورته کونه. (۲) پاڅونه.

**چکوُونکے** :- (چ-کَ+وُو+نْ+کے)-[اِپ-اِس فاع-مذ-وا-ج: چکوونکي. (مؤ: چکوُونکې)-(۱) اوچتووُنکے-پورته کوُونکے. (۲) پاڅووُنکے.

**چکه** :- (چ+که)-[او:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: چکانې]- دماشومانو په ژبه سترګه.

**چکه** :- (چ+که)-[اِپ (ب،خ) اِس-مؤ-وا-ج: چکې]-جګه-اوچته-رنګه.

**چکه شمله** :- (اِص)-(۱) لویه شمله-جګه شمله-اوچته شمله. (۲) ویاړ.

**چکې سترګې** :- (اِص)-اوچتې سترګې-چې شرمنده نۀ وي- د ټیټو سترګو ضد.

**چکه** :- (چَ+ک)-[اَف:پ (قاموس) کلمه-مذ]-د بزې د شړلو اواز.

**چکېدل** :- (چ+کې+د+لْ)-[اِپ-مص-لا]-(۱) اوچتېدل-پورته کېدل. (۲) پاڅېدل.

**چکېدنه** :- (چ+کې+د+نه)-[اِپ-حمص]-(۱) اُوچتېدنه-پورته کېدنه. (۲) پاڅېدنه.

**چکېدُونکے** :- (چ+کې+دُو+نْ+کے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چکېدُونکي-(مؤ: چکېدُونکې)] (۱) اُوچتېدونکے-پورته کېدونکے. (۲) پاڅېدونکے.

**چَل** :- (چَ+لْ)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج: چلونه]- (۱) فرېب-ټګي-دوکه. (۲) حیله-اسره.

شل چلونه مې کول چې یار مې راشي
خو فائده مې په یو چل کښې نۀ وه نۀ شوه (علي خان)

(۳) طریقه. (۴)دښمني کول. غلیمي کول. چاسره مخالفت کول. (۵) د لومبړې یا ګېدړ کوړکۍ. (۶) ګذاره. سلوك. (۷) د ژندرې غوړے. (۸) وار-څل(۹) جاري-چالو. (۱۰) د مېچنو مشین.

**چَل کول** :- (اِص) (۱) ټګي کول-دوکه کول. (۲) مشین چالو کول. (۳) حیله کول. اسره کول. (۴) څۀ طریقه کول.

**چَل کېدل** :- (اِص) (۱) ټګي کېدل-دوکه کېدل. (۲) مشین چالو کېدل. (۳) حیله یا اسره کېدل. (۴) څۀ طریقه کېدل.

**چلاچل** :- (چ+لا+چَ+لْ)-[اِپ-اِس-مذ]-تګ را تګ-تلل را تلل-چل چلاؤ-چلچلا-دسفر تیاري.

**چلان** :- (چ+لا+نْ)-[اِپ-اِس-مذ (مؤ-وا: چلانه-ج: چلانې)] جاري-روان-چلاند-چلند.

ترهغې پورې چلان وي
یو قرآن دوئیم حدیث (علي خان)

**چلاند** :- (چ+لا+نْ+دْ)-[اِپ-اِس-مذ (مؤ-وا: چلانده-ج: چلاندې)]و ـــ چلان.

**چلاؤ** :- (چ+لا+ؤ)-[اِپ-اِس-مذ]-ګذاره-ګذران.

**چلاؤ کول** :- (اِص)-ګذاره کول. ګُذران کول.

**چلاؤ کېدل** :- (اِص)-ګذاره کېدل-ګذران کېدل.

**چَلاؤ** :- (چَ+لا+ؤ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ-وا-ج: چلاوُونه]-د کاریز نه د ختېو ویستلو یو خاص قسم ته رسي.

**چُلاؤ** :- (چُ+لا+ؤ)-[فا-اِس-مذ] یو قسم نمکین پلاؤ.

**چَلباز** :- (چ+لْ+با+زْ)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج: چلبازان (مؤ-وا: چلبازه-ج: چلبازانې، چلبازې)]-ټګ-دوکه باز-فرېبي.

**چلپټے** :- (چَ+لْ+پَ+ټے)-اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-چَل-غوړے.

**چَلچلا** :- (چ+لْ+چ+لا)-[اِپ-اِس-مؤ]- و ــــــــــــ چلاچل

د خپل دم وچلېدو وته غوږ نیسه
هر نفس د تلو اواز کا چلچلا (حمید)

**چل چلاؤ** :- (چَ+لْ+چَ+لا+ؤ)-[اِپ (ظفر)-اِس-مذ] و ــــــــــــ چلاچل

خوب ارام به د زړۀ څۀ رنګ په دنیا شي
په هر دوم دا شنایانو چل چلاؤ دے (سکندرخان خټك)

**چلخے** :- (چَ+لْ+خَے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] شلخې سَر-تروُکے-شلخے-یو قسم ساګ.

**چُلـو** :- (چُ+لُ+ر)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ-وا-ج: چلران (مؤ-وا: چُلره-ج: چلرنې چُلرې)] ناپوهه-ساده- کم عقل.

**چلښت** :- (چ+ل+ښْ+تْ یا چ+ل+خْ+تْ)-[اِپ-اِس-مذ]-(۱) ګذاره-چلن. (۲) بهېدنه-جاري کېدنه.

**چلښت لیکه** :- (چُلښت+لي+کَه)-[اِپ-اِس-مؤ]-د بهېدو یا تلو لار-رګۍ.

**چَلغوزے** :- (چ+لْ+غو+زَے)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج: چلغوزي]-زنې غوزے-یو قسم خشکه مېوه.

**چَلغه** :- (چَ+لْ+غَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]د اُوږد والي او سارۀ اندازه.

**چَلغه کول** :- (اَف) اِص-د څۀ څیز د اُوږد والي یا سارۀ اندازه لګول.

**چَلقت** :- (چَ+لْ+ق+تْ)-[اِپ (ظفر) اِس-مذ-وا-ج: چلقتونه]-زغره.

**چَلکه** :- (چَ+لَ+که)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-د اُوبو څپه.

**چَلګرے** :- (چَ+لْ+ګ+رَے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-لمخي جوړوُونکے-دُوړ.

**چَلګرے** :- (چَ+لْ+ګ+رے)-[اِپ-اِس-مذ]چلولي-چُلباز-چالاك.

**چللو** :- (چَ+لَ+لو)-[اِپ-اِس-مذ]-چلپلو-د ژرندې ټکټکے.

**چلم** :- (چ+ل+مْ)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج: چلمان-چلمُونه]-حُقه-د خاورې یا مَسو نه جوړ هغه څیز چې اُوبۀ په کښې اچولے شي-نڅې په کښې وي او د

تمباکو ښنبلو د پاره استعمالېږي-لکه: چلم تازه په تازه ګیټي سا دين د لُوټيې- په کال کښې دولس چرګان که چا په بیا موند نقصان نو ځاے ئې زۀ علي خان

**چلم اُوبۀ کول** :- (اِص)-دمه کول- د چاسره لږ ساعت دپاره پاتې کېدل.

**چلم اُوبۀ ورسره بندول** :- (اِص) د چاسره تعلق ختم کول.

**چلم تازه کول** :- (اِص) چلم ته تازه اُوبۀ اَچول.

**چلم ښنبل** :- (اِص)-چلم ښکول-د چلم لُوګے اخستل-د چلم په ذریعه تماکو ښنبل-د چلم نشه کول.

**چلم ښکول** :- (اِص)- و________ چلم ښنبل.

**چلم ډکول** :- (اِص)-چلم ته تماکو اچول- د ښنبلو د پاره چلم تیارول.

**چلم ګرځول** :- (اِص)-په جمع کښې په ټولو خلقو د ښنبلو د پاره چلم ګرځول.

**چِلم** :- (چِ+لَ+مْ)-[پ (وز)-اِس-مذ]-(۱) زانې. (۲) چیلم-حقه.

**چِلمچي** :- (چِ+لَ+مْ+چِي)-[فا-اِس-مؤ]-هغه لوښے په مخ لاس په کښې وینځلے شي. لاس وینځونے.

**چِلمرده** :- (چِ+لْ+مَ+رْ+دَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] یو شینکے چې درشکے په شان پاڼې ئې وي او د سوځو لو په کار راځي.

**چِلم طوره** :- (چِ+لَ+مْ+طَو+رَه)-[پ-اِس ص]- د چلم په شان-د چلم په رنګ

چې مدام ترې د افسوس لوخړې خېژي
چلم طوره مې سکارۀ شه لړمون هسې (علي خان)

**چِلم کښ** :- (چ+لَ+م+كَ+شْ یا كَ+خْ)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: چلم کښان (مؤ-وا: چلم کښه-ج: چلم کښې)] چلمي-چلم ښکوُونکے د چلم عملي.

د خوبانو د خودئ په چلم کښ
د یوۀ کش تمباکو شو زما روح (حمید)

**چِلمي** :- (چِ+ل+مِيْ)-[پ-اِس ص] و________ چِلم کښ.

**چلن** :- (چ+لَ+ن)-[پ-اِس-مذ]-(۱) چلند-روان-جاري. (۲) رفتار. (۳) رواج-طرز-طریقه.

**چلند** :- (چ+لَ+نْ+دْ)-[پ-اِس-مذ-(مؤ-وا: چلنده-ج: چلندې)]-و____ چلن.

**چلند غوټه** :- (چَ+لَ+نْ+دْ+غُو+ټَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] هغه غُوټه چې په یو کش پرانستې کېږي لکه د پرتُوغانښ غُوټه.

**چَلندوالے** :- (چَ+لَ+نْ+دْ+وا+لے)-[پ-اِس-مذ]-جاري کېدنه-رواج موندنه.

**چَلندول** :- (چَ+لَ+نْ+د+و+لْ)-[پ-مص-مت]-رواج ورکول- جاري کول.

**چلندونګ** :- (چَ+لَ+نْ+د+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و___ چلندونه

**چلندونه** :- (چَ+لَ+نْ+د+و+نه)-[پ-حمص] چلندونګ-جاري کونه-رواج ورکونه.

**چَلندوُونکے** :- (چَ+لَ+نْ+دَ+وُ+نْ+کے)-[پ-فاع-مذ-وا-ج: چلندوُونکي (مؤ: چلندوُونکې)]-جاري کوُونکے-رواج ورکوُونکے.

**چلنده لار** :- (چَ+لَ+نْ+دَه+لا+رْ)-[پ-اص]-عامه لار-چلني لار-چوراهي لار-بادشاهي لار.

**چَلندي** :- (چَ+لَ+نْ+دِيْ)-[پ-ص]-چې رواج ئې موندلے وي-جاري شوے.

**چَلني لار** :- (چَ+لَ+نِيْ+لا+رْ)-[پ-اِص] و________ چَلنده لار.

**چَلوټه** :- (چَ+لْ+وَ+ټه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-ګذاره-وخت تېرونه.

**چَلوټه کول** :- (اَف) اِص-ګذاره کول-وخت تېرول.

**چَلوټه کېدل** :- (اَف) اِص-ګذاره کېدل-وخت تېرېدل.

**چَلول** :- (چَ+لْ+وَ+لْ)-[پ-اِس-مذ] آنې بانې-مکروفرېب- ټګي ټوري.

**چَلول کول** :- (اِص)-آنې بانې کول-مکر و فرېب کول-ټګي ټوري کول.

**چَلول** :- (چَ+لُ+وَ+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-ګډول-یو ځاے کول.

**چلول کول** :- (اَف)-اِص-ګډول-یو ځاے کول.

**چلول کېدل** :- (اَف)-اِص-ګډېدل-یو ځاے کېدل.

**چلول** :- (چ+لْ+و+ل)-[پ-مص مت]-(۱) رواج ورکول-جاري کول. (۲) مشین روانول. (۳) مشهورول. (۴) یو ځاے نه بل ځاے ته وړل. (۵) شائع کول. (۶) د سوداګرئ د پاره یو ځاے ته تلل را تلل. (۷) استعمالول. (۸) ګذاره کول.

آزموده یار کړه له غېرو ډار کړه
ټول غُلول کوي کار چلول کوي (علي خان)

(۹) د بدکارئ کاروبار کول.

**چلولے** :- (چ+ل+وَ+لے)-[پ-مف مذ-وا-ج: چلولي (مؤ: چلولې)]-(۱) جاري کړے-رواج ورکړے. (۲) مشین روان کړے. (۳) یو ځاے نه بل ځاے ته وړے. (۴) شائع کړے. (۵) استعمال کړے.

**چلولي** :- (چَ+لْ+و+لِيْ)-[پ-اِس ص] ټګ-دوکه باز-چل ګرے-مکار.

**چلومبه** :- (چْ+لو+مْ+به)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-مچلوغزه- مچوغنه.

**چلون** :- (چ+لُوْ+نْ)-[پ-اِس-مذ]-ګذاره-وخت تېرے.

**چلون کول** :- (اِص) ګذاره کول-وخت تېرول.

**چلونګ** :- (چ+لْ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و_____ چلونه.

**چلونه** :- (چ+ل+و+نه)-[پ-حمص] (۱) چلونګ-جاري کونه-رواج ورکونه. (۲) مشین روانونه. (۳) ګذاره کونه. (۴) په استعمال کښې راوستنه. (۵) شائع کونه. (۶) د بدکارئ کاروبار کونه.

**چلوُونکے** :- (چ+ل+وُ+نْ+کے)-[پ-فاع-مذ-وا-ج: چلوُونکي (مؤ: چلوُونکې)] (۱) جاري کوُونکے-رواج ورکوُونکے. (۲) مشین روانوُونکے. (۳) ګذاره کوُونکے. (۴) شائع کوُونکے. (۵) استعمال کښې راوستُونکے. (۶) د بدکارئ کاروبار کوُونکے.

**چَله** :- (چَ+لَه)-[پ-اِس-مؤ-وا-ج: چلې] (۱) د نارینه د غوړو والئ. (۲) ښپه. (۳) سېلاب.

ګوره څو عالم به لاندې کا تر چلو
نن چې دا دریاب راوخوت موج ئې زور شه (خوشحال)

**چَله راتلل** :- اص-ښپه راتلل- سېلاب راتلل.

**چله** :- (چَ+له-[پ-اِس-مؤ] ګذاره-ګذران-وخت تېرے.

**چله کول** :- اِص-ګذاره کول-ګذران کول-وخت تېرول.

**چله کېدل** :- اِص-ګذاره کېدل-ګذران کېدل-وخت تېرے کېدل.

**چَلۍ** :- (چَ+لۍ)-[پ-اِس-مؤ] (۱) د جوارو وږے. (۲) د نارینۀ یو قسم ګوته.

**چلۍ** :- (چ+لۍ)-[اَف: پ (قاموس)-اِس-مؤ]-هغه تار چې پېزار پرګنډي.

**چلے** :- (چ+لَے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-(۱) کمزوره-مانده-چلیمخ. (۲) هغه لرګے چې ګاځې پر صفا کولے شي-لوړکے.

**چَلي** :- (چَ+لِيْ)-[پ-اِس-ص]-چلولي چل ګرے-ټګ-دوکه باز.

**چلېدل** :- (چ+لې+د+لْ)-[پ-مص لا]-(۱) جاري کېدل-رواج موندل. (۲) مشین روانېدل. (۳) مشهورېدل. (۴) شائع کېدل. (۵) د بدکارئ کاروبار کېدل. (۶) استعمالېدل. (۷) ګذاره کېدل.

د چا قلبې ناکره روپئ چلېږي
د چا زرو ته د مسو تاثیر ګډ کا (علي خان)

**چلېدلے** :- (چ+لې+دَ+لے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چلېدلي (مؤ: چلېدلې)] (۱) جاري شوے-رواج موندلے. (۲) مشين روان شوے. (۳) مشهور شوے. (۴) شائع شوے. (۵) استعمال شوے. (۶) د بدکارۍ کاروبار شوے.

**چلېدنګ** :- (چ+لې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و______ چلېدنه.

**چلېدنه** :- (چ+لې+د+ن)-[اِپ-حمص]-(۱) چلېدنګ-چلېدۀ-جاري کېدنه-رواج موندنه. (۲) مشين روانېدنه. (۳) مشهورېدنه. (۴) شائع کېدنه. (۵) د بدکارۍ کارکېدنه. (۶) استعمالېدنه. (۷) ګذاره کېدنه.

**چلېدُونکے** :- (چ+لې+دُو+نْ+کے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چلېدونکي (مؤ: چلېدُونکې)] (۱) جاري کېدونکے-رواج موندونکے. (۲) مشين روانېدونکے. (۳) مشهورېدونکے. (۴) شائع کېدونکے. (۵) د بدکارۍ کارکېدونکے. (۶) استعمالېدونکے.

**چلېدۀ** :- (چ+لې+دۀ)-[اِپ-حمص]- و______ چلېدنه.

**چلېکار** :- (چ+لې+کا+ر)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-چریکاو.

**چلېګر** :- (چ+لې+ګ+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ (مؤ-وا: چلېګره-ج: چلېګرې)]-چلباز-ټګ- فریبي-دوکه باز-چلولي.

**چلېلو** :- (چ+لې+لو)-[اِپ-اِس] و______ چللو.

**چَم** :- (چَ+مْ)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج: چمُونه]-(۱) کندے-محلت-کُوڅه.

ډېر دي په دا چم کښې چې پټ پټ د مینې لاف کا
ولې اوس یوائې د خوشحال ورته پېغور شه

(۲) دوکه-فریب-ټګي. (۳) پُونه-پشم-نرے باران.

**چَم په چَم** :- اِص-کُوڅه په کُوڅه-کندي په کندي.

د دې عشق پالنه بۀ بویه دلبره
چې مشهور کلي په کلي چم په چم شم (علي خان)

**دچاپه چم پوهېدل** :-(اص)-د چا په ټګۍ یا فریب پوهېدل-د چا د دوکې نه خبرېدل.

**چم** :-(چ+مْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ] (۱) لُوټه-لرې شان غُنډې کړې لوندې ختې.

چې د نۀ کړو په نبکۍ د ننګاؤ نام لوړ
پـه دوه چمه دے د ختو مه شه بام لوړ (حمید)

(۲) د غوښې یوه ټوټه. (۳) وابۀ یا وېښتۀ په خپلو کښې نغښتل.

**چمانده** :- (چ+ما+نْ+دَه)-[اِپ (ظفر)-اِس-مؤ]-جنتي مرغۍ-سپېرلکه-سپېرکنده-خره مرغۍ.

**چمباز** :- (چَ+مْ+با+زْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چمبازان (مؤ-وا: چمبازه-ج: چمبازانې)]-ټګ-فریبي-چلېګر.

**چمبازي** :- (چَ+مْ+با+زي)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-ټګي-دوکه-فریب-چلول.

**چَمبر** :- (چَ+مْ+بَ+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چمبرونه] چنبر-د پروېزي حلقه یا دائره.

**چَمبـر** :- (چَ+مْ+بَ+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-(۱) ګُلداره خمتا. (۲) ننبتے-دا د اَمبږ سره یو ځاے راځي-لکه امبږ چمبږ.

**چَمبړے** :- (چ+م+ب+ړے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چمبړي] شناز-د لامبو مشك-سنداري.

**چَمبل** :- (چ+م+ب+لْ)-[اِپ (ب) خ)-اِس-مذ]-زېلانګه-کولُه ولي-بنوشه- هغه زېړې شان زېلې چې وُنې ته واچولے شي نو ورځ په ورځ زیاتېږي او اخر ونه بېخي وچه کړي.

**چمبـول** :- (چ+مْ+بو+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-(۱) کوږ لوبنے. (۲) د ماشومانو یوه لوبه چې د لامبېدلونه روستو په شګو لوبې کوي.

**چمبـه** :- (چ+مْ+بَـه)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ-وا-ج: چمبې]-(۱) پنجه. (۲) تمبل. (۳) د ټوپۍ یا کوُلې غاړه یا چنه.

**چمبه پرسایېدل** :- (اص)تر چمبه لاندې کېدل-وَس پرې برېدل-تر قابو لاندې راتلل.

**ترچمبه لاندې کول** :- (اص)-په قابو کښې راوستل.

**ترچمبه لاندې کېدل** :- و______ چمبه پوسایېدل.

**چَمبه کښه** :- (چَمبه+کَ+شه یا خه)-[اَف-پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: چمبه کښې]-د تنور یو قسم ډوډۍ.

**چَمبې** :- (+ـَ+مْ+بې)-[اَف: پ (قاموس) اِس-مذ-وا-ج:چمبې]-(۱) چنبر ګردے-د مزغې د لاندې ګول شان اَوکے. (۲) د قلعې چار دیواري.

**چمبېرک** :- (چَ+مْ+بې+رِ+کْ)-[اِپ-اِس-مذ]نباپېرک-ماشام چکالے.

**چَمبېره** :- (چَ+مْ+بې+رَه)-[اِپ-اِس-مؤ] چُوسې-چشې-د ماشوم د ذکر هغه پرده چې د سنت په وخت ترې پرې کولے شي.

**چَمبېلي** :- (چَ+مْ+بې+لِيْ)-[ه-اِس-مؤ]-یو قسم خوشبو دار ګل. چې سپین او زېړ ګُلونه کوي-چلبېلي.

**چَمتاره** :- (چَ+مْ+تا+ره)-[اِپ-مؤ-وا-ج: چمتارې]-یو قسم سارنده.

دا چمتارې دا ربابونه سرودُونه یوسه
سپرلیه څه په مخ دې ښه بیرته ګُلونه یوسه (پریشان خټك)

**چمتو** :- (چَ+مْ+تُوْ)-[اَف:پ (قاموس) ص]-(۱) په لاس راغلے. (۲) منتظر.

**چمتو کول** :- (اَف-اص-(۱) په انتظار کښې ساتل-(۲) په لاس کښې راوستل.

**چَمته** :- (چَ+مْ+تَـه)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ-وا-ج: چمتې]-(۱) دبه-هغه کُلپې چې دارو په کښې کښېښولے شي. (۲) تبلې-کڅوړه

په چمته کښې لوے غرځاے کا
پـه کـوزه کـښـې ږدې عـمـان

**چمتې** :- (چَ+مْ+تَے)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]-سَرئ-هغه لرګے چې د ستنې د پاسه د شاتیرونو د کښېښودو د پاره لګولے شي.

**چمته** :- (چَ+مْ+تَه)-[اِپ-ه: چمتا-اِس-مؤ-وا-ج: چمتې]-د سپنا-اور لړُونے.

**چمجن** :- (چ+م+ج+نْ)-[اِپ-اِس-مذ] چجن-چې چینجو وهلے وي-سخا.

**چمجے** :- (چ+مْ+جَے)-[اِپ-اِس-مذ]-چنجے-حشره.

**چَمچ** :- (چَ+مَ+چْ)-[ه-اِس-مذ] چمچې-څمڅه-کاشوغه-چمچې.

**چمچالو** :- (چ+مْ+چا+لُوْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چمچالُوګان] یو مرغۍ چې چنجې خوري.

**چمچرۍ** :- (چَ+مْ+چُ+رئ)-[اِپ-اِس-مؤ] شُور شورۍ-د آتشبازۍ څیز چې د وادۀ یا خوشحالۍ په موقع خلاصولے شي.

**چمچکۍ** :- (چَ+مْ+چَ+کئ)-[اِپ (سو)-اِس-مؤ]-کر بوړے-مارخورۍ.

**چمچلغے** :- (چ+م+چ+لَ+غے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چمچلغې-چمچلغیان]-د اُوبو یو قسم مرغۍ.

**چمچلے** :- (چ+مْ+ج+لے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ (مؤ:چمچلې)] (۱) د لرګي هغه ګډوونے چې ماشومان ئې په مزکه څرخوي. (۲) بانه ګیر بنیادم. (۳) لنبتے. نڅاکوُونکے هلك.

**چَمچمار** :- (چ+مْ+چ+ما+رْ)-[اِپ-اِس-مذ]-یو قسم نرے او د زهرو نه ډك مار.

**چَمچُوري** :- (چَ+مْ+چُو+رئ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-وړه کاشُوغه-چمچې-ورکوټې سیپې.

**چَمچـوری** :- (چَ+مْ+چُـو+رئ)-[اپ (ب، خ، اِس-مـؤ]-هغـه وړه لوټـه شـان چـې کشکوړ ئي نه‌وي-ډولۍ.

**چمچورۍ** :- (چَ+مْ+چو+رئ)-[اپ (خل) اِس-مؤ]-د چندخې ورکوټي بچي چې په اُوبو کښې د چینجو په شان ګرځي.

**چَمچه** :- (چَ+مْ+چه)-[اپ-اِس-مؤ-وا-ج: چمچې] و_____ چَمچ.

**چمـړدے** :- (چ+م+ړْ+دَ+ے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چمړدیـان] د شولو د پیکو د مېنځ تیرکے.

**چَمړه** :- (چَ+مْ+ړَه)-[اپ-ه: چمړا-اِس-مؤ-وا-ج: چَمړې]-څرمن.

**چَمړه لګول** :- (اِص)-څرمن لګول-د څرمنې ټوټه خېژول.

**چَمړه وتل** :- (اِص)-زیات کړېدل-ډېر تکلیف او کړاو پېښېدل.

**چمړه ویستل** :- (اِص)-(۱) څرمن ویستل. (۲) زیات کړول. (۳) څۀ څیزګران خرڅول.

**چمغټ** :- (چَ+مْ+غ+ټْ)-[اپ-اِس-مذ]-چمغړل- مړی- څټ.

**چمغړک** :- (چ+مْ+غَ+ړ+کْ)-[اپ-اِس-مذ]-مرئ-د مرۍ اړوکے.

کۀ اوبۀ دې د نجیل د منګي وڅښې
د ستا وخیـژي دانـه پـه چمغړک (خوشحال)

**چَمک** :- (چَ+مْ+کْ)-[ه-اِس-مذ]-ځلا-پړک- برلښ.

**چَمکار** :- (چَ+مْ+کا+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-ځلنده-برېښنـدُونکے-چڼ کېدُونکے-پڼ کېدُونکے.

**چمکدار** :- (چَمك+دا+رْ)-[اپ-اِس ص-مذ-(مؤ-وا: چمکداره-ج: چمکدارې)]-ځلند-برېښېدونکے پڼ کېدونکے-چڼ کېدونکے.

**چَمکلۍ** :- (چَ+مْ+کَ+لي)-[اپ-اِس-مؤ]-د زنا ناؤ د غاړې یو کالے.

**چَمکنـي** :- (چَ+مْ+کَ+نـي)-[اَف: پ (قـاموس)-اِس-مـؤ]-یـو قسم پېزارچې د رېښمو یا تېلي کار پرې شوے وي.

**چَمکني** :- (چَ+مْ+کَ+نيْ)-[اپ-اِس-معرفه]-څمکني-دپېښور سره نزدې د یو ځاے نوم.

**چَـم ګاونـډ** :- (چَ+مْ+ګـا+وْ+نْ+ډْ)-[اپ-اِس-مـذ-وا-ج: چمګونـډان-(مـؤ-وا: چمګاونډه-ج: چمګاونډې)]- چمګونډ-کور محلت.

**چَمګـر** :- (چَ+مْ+ګ+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ (مـؤ-وا: چمګـره-ج: چمګړې)]-چلولي-دوکه باز-ټګ چموکے.

**چَمګونډ** :- (چَ+مْ+ګ+وَ+نْ+ډْ)-[اپ-اِس-مذ] و_____ چَمګاونډ.

**چَمن** :- چَ+مَ+نْ)-[اپ-اِس معرفه]-په بلوچستان کښې د کوئیټې سره د یو ځاے نوم.

**چمن** :- (چَ+مَ+نْ)-[فا-اِس-مذ-وا-ج: چمنُونه]-(۱) د ګُلونو وړه شان باغیچې.

کۀ په غوړو باندې نوم د خزان واوري
بـريـائـي بـه پـه سروګلو چمن نۀ کا (علي خان)

**چمن ته تېرول** :- (اِص)-د لاړې د سیټونو سره لاتدې په فرش کښېنول.

**چمن کښې کښېنول** :- (اِص) و_____ چَمن ته تېرول.

**چمنـډ** :- (چَ+م+نْ+ډ)-[اپ (ب، خ، -ص- مـذ-(مـؤ-وا: چمنـډه-ج: چمنـډې)] مضبوط-ډك وجود.

**چمني** :- (چ+مْ+نِيْ)-[اَنګ-اِس-مؤ](۱) د لوګي وتو لار- دُور کش (۲) د لالټېن شیشه.

**چموسه** :- (چ+مو+سه)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـؤ-وا-ج: چموسې] د کچې څرمنې پېزار.

**چَموکے** :- (چَ+مُـو+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چمُـوکي (مـؤ-وا: چمُوکې) و_____ چَمګر.

**چمه** :- (چ+مَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-بدخویه ښځه.

**چَمه** :- (چَ+مَه)-[اپ (خ)-اِس-مؤ-وا-ج: چمې]-غرمه-کانړے-تېږه.

**چَمیـار** :- (چَ+مْ+یـا+رْ)-[اپ-اِس-مـذ-وا-ج: چمیـاران (مـؤ-وا: چمیـاره-ج: چمیارې- چمیارانې)]-موچي څمیار.

کۀ چمیار دے کۀ نداف دے کۀ جولا دے
تـراصیـل سـړي ئـې کـښـېـنـوي برزر (خوشحال)

**د چمیـارانو جرګـه** :- (سـو) اِص-پرېُـوونے-پـرېمنے-پـروین-د آسمان څومیـك ستوري.

**چَمیـارتوب** :- (چَمیـار+تو+بْ)-[اپ-اِس-مـذ]-چمیـاري-څمیـاري- د چمیـار کسب.

**چَمیکے** :- (چَ+مِي+کے)-[اپ (ب، خ) اِس-مذ-وا-ج: چمکي]-د چرګې ور کوټے بچے-چرګوټے-چرګوچے- چرګوړے.

**چنار** :- (چَ+نا+رْ)-[فا-اِس-مذ-وا-ج: چنارُونه]-یو قسم وُنه چې پاڼې ئې د بنیادم د پنجې په شان وي-او سورے ئې ګُور وي.

اور د خوړو زړو دے چې د غرۀ په ونو بل شو
شـنـې ډډوزې خـېـژي لـه نښتره له چنار (قاموس)

**چناؤ** :- (چَ+نا+ؤ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]-د اُوبو سر چې په ویالۀ کښې راځي.

**چنباګل** :- (چَ+نْ+با+ګُ+لْ)-[اپ-ه: چمپا-اِس=مذ]-یو قسم ګل چې زېړ سپین رنګ ئې وي

ښۀ په هند کښې چنبا ګُل دے
تـر دا ګـُل د وطـن خـار ښۀ (خوشحال)

**چَنبر** :- (چَ+نْ+بَ+رْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ-وا-ج: چنبرُونه]و___ چَمبې.

**چَنبیلي** :- (چَ+نْ+بي+لِيْ)-[ه-اِس-مؤ]-و_____ چَمبیلي.

**چُنج** :- (چُ+نْ+جْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-کرکه-نفرت.

**چُنج ځني کول** :- (اَف)-کرکه کول- نفرت کول.

**چنجرۍ** :- (چَ+نْ+جْ+رئ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-زرکه.

**چنجـرے** :- (چِ+نْ+ج+رَ+ے)-اپ (ګـن)-اِس-مـذ-وا-ج: چنجـري] تنـزرے- څنځرے.

**چِنجن** :- (چِ+نْ+ن+ج+نْ)-[اپ-ص-مذ-(مؤ-وا: چنجنه-ج: چنجنې)] و_____ چمجن.

**چِنجنتـوب** :- (چنجن+تـو+بْ)-[اپ-اِس-مـذ]-(۱) چنجنتیـا-چـنجن والے- سخاتوب. (۲) خبره کښې خبره پیدا کول-د مچ نه کچُ ویستل.

**چنجنتیا** :- (چنجن+تْ+یا)-پ-اِس-مؤ]-و_____ جنجنتوب.

**چنجنوالے** :- (چنجن+وا+لے)-[اپ-اِس-مذ] و_____ چنجنتوب.

**چِنجنـول** :- (چِ+نْ+جْ+نْ+و+لْ)-[اپ-مـص مـتـا]-(۱) چـنجن کـول-سخا کول- چنجي په کښې کول. (۲) څۀ خبره اُوږدول.

**چنجنونګ** :- (چ+نْ+ج+نْ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس) حمص]و___ چنجنونه.

**چنجنونه** :- (چِ+نْ+ج+نْ+و+نه)-[اپ-حمص]-چنجنونګ-سخا کونه-چنجي په کښې کونه.

**چنجنوُونکے** :- (چِ+نْ+ج+نْ+وُ+وْ+نْ+کے)-[اپ-فاع-مذ-وا-ج: چنجنوُونکي-(مؤ: چنجنووُنکې)] سخا کوونکے-چنجي په کښې کوُونکے.

**چنجنه ډبره** :- (چ+نْ+ج+ن+ډ+بَ+ره)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ] -سخت، بېره او سُوري سُوري کاڼې چې د هغې نه د اوبنکو په شان ماده راځېږي.

**چنجنېدل** :- (چ+نْ+ج+نې+د+لْ)-[اِپ-مص لا] -(۱) چنجن کېدل-سخاکېدل-چنجي په کښې کېدل. (۲) څۀ خبره اُوږدېدل.

**چنجنېدنګ** :- (چ+نْ+ج+نې+د+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و___ چنجنېدنه.

**چنجنېدنه** :- (چ+نْ+ج+نې+د+نه)-[اِپ-حمص] -(۱) چنجنېدنګ-چنجنېدۀ-سخاکېدنه-چنجي په کښې کېدنه-چنجن کېدنه. (۲) خبره اُوږدېدنه.

**چنجنېدنګ** :- (چ+نْ+ج+نې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و___ چنجنېدنه.

**چنجنېدنه** :- (چ+نْ+ج+نې+د+نه)-[اِپ-حمص] (۱) چنجنېدنګ-چنجنېدۀ-سخاکېدنه-چنجي په کښې کېدنه-چنجن کېدنه. (۲) خبره اُوږدېدنه.

**چنجنېدُونکې** :- (چ+نْ+ج+نې+دُو+نْ+کې)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چنجنېدُونکي (مؤ: چنجنېدُونکې)] -(۱) چنجن کېدُونکې-سخاکېدُونکې. (۲) خبره اُوږدېدونکې.

**چنجنېدۀ** :- (چ+نْ+ج+نې+دۀ)-[اِپ-حمص] و___ چنجنېدنه.

**چنجُوغې** :- (چ+نْ+جُو+غې)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ] -د یو بُوټي مېوه چې رنګ ئې سُور وي او خوند ئې خوږ وي-د پېچش د علاج د پاره استعمالېږي.

**چُنجول** :- (چُ+نْ+ج+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص-مت] کرکه پیدا کول- زړۀ تورول-نفرت پیدا کول.

**چُنجولې** :- (چُ+نْ+ج+وَ+لې)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: چنجولي (مؤ: چُنجولې)] -کرکه پیدا کړې-زړۀ تور کړې. د پرهوتي شان یو بوټې دې.

**چُنجونګ** :- (چُ+نْ+ج+وَ+نْ+ګ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و___ چُنجونه.

**چُنجونه** :- (چُ+نْ+ج+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] -کرکه پیدا کونه-زړۀ تورونه-نفرت پیدا کونه.

**چُنجووُنکې** :- (چُ+نْ+ج+وُو+نْ+کې)-[اَف:پ (قاموس)-فاع-مذ-وا-ج: چُنجووُنکي-(مؤ: چنجووُنکې)] -کرکه پیدا کووُنکې-زړۀ تورووُنکې.

**چَنجوئي** :- (چَ+نْ+جُو+ئي)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چنجویان] یو درې غانبې آله چې کوچیان پرې پتېره ډوډۍ مېده کوي.

**چنجې** :- (چ+نْ+جې)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: چنجي-چنجیان] -حشره-چمچې-یو ورکوټې شان ژوندي سرې چې په مزکه لُوغړېږي.

**چُنجېدل** :- (چُ+نْ+جې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص لا] -کرکه پیدا کېدل-نفرت کېدل-زړۀ تورېدل.

**چُنجېدلې** :- (چُ+نْ+جې+د+لې)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: چُنجېدلي (مؤ: چنجېدلې)] -کرکه پیدا کړې-نفرت پیدا کړې- زړۀ تور کړې.

**چُنجېدنګ** :- (چُ+نْ+جې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و___ چُنجېدنه.

**چُنجېدنه** :- (چُ+نْ+جې+د+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] - چُنجېدنګ-کرکه پیدا کېدنه-نفرت کېدنه-زړۀ تورېدنه.

**چُنجېدُونکې** :- (چُ+نْ+جې+دُو+نْ+کې)-[اَف:پ (قاموس) مف-مذ-وا-ج: چُنجېدُونکي (مؤ: چُنجېدُونکې)] -کرکه پیدا کېدُونکې-نفرت پیدا کېدُونکې-زړۀ تورېدونکې.

**چَندربنسي** :- (چَ+نْ+دَ+رْ+بَ+نْ+سي)-[اِه-اِس] -د هندوانو یو مشهور خاندان.

**چَندرچیري** :- (چَ+نْ+د+رْ+چي+ريْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ] -د ماشومانو یو قسم لوبه.

**چندرُو** :- (چ+ن+ر+رُوْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] -پرخه پُونې.

**چندرو** :- (چ+نْ+دْ+رو)-[اِپ-اِس-مؤ] چندرۍ] -د ماشومانو یوه لوبه چې په مزکه کرښې وُباسي او یو پلن شان کاڼې د پښې په ګوته د یوې کرښې نه بلې کرښې ته وُباسي.

**چندروکې** :- (چ+نْ+دْ+رُو+کې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] -چُورندك-چترې-چترکې.

**چندرۍ** :- (چِ+نْ+دْ+رَۍ)-[اِپ-اِس مؤ] -(۱) و___ چندرو. (۲) ګُډګُډك-په یوه پښه په ټوپُونو تلل.

**چَندرې** :- (چَ+نْ+د+رې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چندري-چندریان] -د ښځو د شرم ځاې-کسُکې.

**چُندریګر** :- (چُ+نْ+رْ+ري+ګَ+رْ)-[اِس-مذ] په کراچۍ کښې د مسلمانانو د یوې قبیلې نُوم.

**چندړ** :- (چَ+نْ+دَ+ړْ)-[اِپ-اِس-مذ] -چندڼ-یوه وُنه چې لرګې ئې خوشبویه وي.

**چندل** :- (چ+نْ+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] -ګُډګډك-په یوه پښه تلل-الګوړې.

**چندل تلل** :- (اَف)-اص-په الګوړې تلل-په ګُډګډك تلل.

**چَندڼ** :- (چَ+نْ+دَ+نْ+ڼْ)-[اِپ-اِس-مذ] -و___ چندړ.

سپین ښامار بچې دوه سرې خوب په چندڼ ښاخ که
یائې سپینو پښوته دې پراتۀ سپین پوخندې (علي خان)

**چَندڼهار** :- (چندڼ+ها+رْ)-[اِپ-اِس-مذ] -د چندڼ د دانومېل- د غاړې یو کالي ته هم وائي.

**چَندوړې** :- (چَ+نْ+دو+ړې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چندوړي] -کودرې.

**چَندوله** :- (چَ+نْ+دو+لَه)-[اِپ (ظفر)-اِس-مؤ] -پېغله-جل.

**چَندوڼې** :- (چَ+نْ+دو+نْ+ړې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چندوڼي] -د غوړ پخکې-نرمه- د غوړ پسته غوښه.

**چَنده** :- (چَ+نْ+دَه)-[فا-اِس-مؤ-وا-ج: چندې] -(۱) هغه پیسې چې د خلقو نه د څۀ کار د پاره ټولولې شي. (۲) د اخبار یا رسالې میاشتنۍ یا د کال معاوضه.

**چنده بوژول** :- (ګن) اِص-چنده ټولول-چنده غونډول-چنده کول-چنده ګرډول-د مختلفو خلقو نه د څۀ کار د پاره پیسې ټولول.

**چنده ټاکل** :- (چنده مقرره ول-د رقم یو خاص مقدار د چندې په ډول کښېښول.

**چنده ټولول** :- (اص)-و___ چنده بوژول.

**چنده غونډول** :- (اص) و___ چنده بوژول.

**چنده کول** :- (اص) و___ چنده بوژول.

**چنده ګرډول** :- (اص) و___ چنده بوژول.

**چنده مقرره ول** :- (اص) و___ چنده ټاکل.

**چنده ورکول** :- (اص) (۱) دا مداد په طور څۀ خاص رقم ورکول. (۲) د اخبار یا رسالې ماهوار یا سالانه معاوضه ورکول.

**چنده ورکېدل** :- (اص)-(۱) د امداد په ډول څۀ رقم ورکولې کېدل. (۲) د اخبار یا رسالې ماهوار یا سالانه معاوضه ورکولې کېدل.

**چنده هضمول** :- (اص) د چندې غونډه کړې شوې رقم په خپله خوړل-د

چنډې په رقم کښې خيانت کول.

**په چنده جوړول** :- (څۀ څيز يا مکان د چنډې په پيسو تيارول.

**چنډے** :- (چَ+نْ+ډَ+ے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چنډي-چنډيان (مؤ-وا: چنډۍ-ج: چنډيانې)] شاعر.

**چنډال** :- (چ+نْ+ډا+ل)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ- (مؤ-وا: چنډاله-ج: چنډالې)]-(۱) چوړے-جمعدار-صفائي کوُونکے. (۲) خوار غريب. (۳) کمينه. (۴) بې همته. (۵) د ټولو حقونو نه محرومه.

**چنډاول** :- (چ+نْ+ډا+و+لْ)-[پ (ظفر)-اِس]-د لښکر دُمبال-د لښکر هغه ټولے چې د ټولو نه روستو وي.

**چَنډت** :- (چَ+نْ+ډ+تْ)-[اَف: پ (قاموس)-اِس-مذ]-خوار-غريب-مفلس-خوارپړک.

**چَنډک** :- (چَ+نْ+ډَ+کْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-] شنډك-د هلکانو يوه لوبه چې په مزکه کښې کُوتۍ وکني او د لرې نه کانې په کښې اچوي.

**چنډو** :- (چَ+نْ+ډُو)-[ه-اِس-مذ] چانډو-يوه نشه چې اپيم په اوبو کښې پاخۀ کړي او بيائې په چيلم کښې څښي.

**چنډوباز** :- (چَنډُو-با+زْ)-[ه-اِس ص-مذ]-د چنډُو نشه کوُونکے.

**چَنډُوکه** :- (چ+نْ+ډُو+کە)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: چنډوکې] يو قسم بُوټے.

**چنډه** :- (چَ+نْ+ډه)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ-وا-ج: چنډې]-ټکړه-ټوټه-حصه.

**چنډې چنډې کول** :- (اَف) اِص-ټکړې ټکړې کول-ټوټې ټوټې کول.

**چڼ** :- (چَ+نْ+ڼ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-(۱) ګوډ-د فصل نه فالتو واښۀ ويستنه. (۲) چاڼ-پاك-صاف. (۳) د کوټې په چت خاشاك وغېره اچونه. (۴) پنبه ډنډت کول. (۵) انتخاب-چُوڼ.

**چڼ کول**:- (اَف)-اِس-(۱) ګوډ کول. (۲) چاڼ کول-صفا کول. (۳) د کوټې په چت خاشاك وغېره اچول. (۴) پُنبه ډنډت کول. (۵) انتخاب کول-چُوڼ کول.

**چڼ کېدل** :- (اَف)-اِص-(۱) ګوډ کېدل. (۲) چاڼ کېدل-صفا کېدل. (۳) د کوټې په چت خاشاك اچولے کېدل. (۴) پُنبه ډنډت کېدل. (۵) انتخاب کېدل- چُوڼ کېدل.

**چڼاخه** :- (چ+نْ+ڼا+خه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-د جوړوُنو درد- د اندامونو درد-اډوکي خوږېدل.

**چڼاخه کول** :- (اَف) اِص-اډوکي خوږېدل د جوړونو درد کېدل-د اندامونو درد کېدل.

**چڼاسک** :- (چ+نْ+ڼا+س+کْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ (مؤ-وا: چڼاسکه-ج: چڼاسکې)] بوئين ناك-سخا شوے څيز چې شين پشم شان پرې جوړشي-چنياسن.

**چڼاسکه** :- (چ+ڼا+سْ+کە)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: چڼاسکې]-يو بُوټے چې د بنفشي رنګ ګل کوي.

سپينه خولۀ ګلاس په لاس کښې
بوره ګل وه د چڼا سکې (کاکړې لنډۍ)

**چڼاسکه** :- (چ+نْ+ڼا+سْ+کە)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-پنسلين-شين پشم شان چې په سخا شوي څيز ليدے شي-چڼاسه-چنياسه.

**چڼاسه** :- (چ+نْ+ڼا+شه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: چڼاسې]و___ چڼاسکه.

**چڼاسه کول** :- (اَف) اِص-په سخا شوي څيز شين پشم شان راوتل.

**چڼاشي** :- (چ+نْ+ڼا+شي)-[پ (مهمند)-اِس-مذ-ج] کرُوپي-ګګړي-بُوګړې-ګوګړې.

**چڼچڼ** :- (چ+نْ+ړ+چ+نْ+ړ)-[پ (ګڼ)-اِس-مذ]-(۱) د چړ چڼې اواز. (۲) چرچڼ-چڼ چړکه. متل: وطن چڼچڼو وخوړو بدنامي بلبلې شوې.

**چڼچڼ کول** :- (اِص)-د چړ چڼې اواز کول-چرچڼه چڼېدل.

**چڼچڼکه** :- (چ+ن+ړ+چ+نْ+ړ+کە)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: چڼچڼکې]- چڼ چڼه-چرچڼه يو مرغې چې په کورو کښې جالې اچوي.

**چڼچڼه** :- (چ+نْ+ړ+چ+نْ+ړه)-[پ-اِس-مؤ-وا-ج: چڼچڼې] و ___ چڼچړکه.

**چڼکاؤ** :- (چ+نْ+ړ+کا+ؤ)-[پ-اِس-مذ]-د اُوبوترمکه-د اُوبو بوژ.

**چڼکاؤ کول** :- (اِص)-اُوبۀ ترمکه کول-اُوبۀ پُوژول.

**چَڼکاوول** :- (چ+نْ+ړ+کا+و+و+لْ)-[پ-مص مت]-اُوبۀ ترمکه کول-چڼکاؤ کول-اُوبۀ پُوژول.

**چَڼکاوونه** :- (چَ+نْ+ړ+کا+و+و+نه)-[پ-حمص]-اُوبۀ چڼکاؤ کونه-اُوبۀ ترمکه کونه-اُوبه پُوژونه.

**چڼکاووُونکے** :- (چ+نْ+ړ+کا+و+وُو+نْ+کے)-[پ-اس فاع-مذ-وا-ج: چڼکاووُونکي (مؤ: چڼکاووُونکې)]-اُوبۀ ترمکه کوونکے. چڼ کاؤ کوونکے-اُوبۀ پُوژوونکے.

**چَڼکاوېدل** :- (چَ+نْ+ړ+کا+وې+د+لْ)-[پ-مص لا]-اُوبۀ چڼکاؤ کېدل-اوبۀ ترمکه کېدل-اوبۀ پُوژولے کېدل.

**چڼکاوېدنه** :- (چ+نْ+ړ+کا+وې+د+نه)-[پ-حمص]-اُوبۀ چڼکاؤ کېدنه-اُوبۀ ترمکه کېدنه-اُوبۀ پُوژولے کېدنه.

**چَڼکاوېدُونکے** :- (چ+نْ+ړ+کا+وې+دُو+نْ+کے)-[پ-صف-مذ-وا-ج: چڼکاوېدُونکي (مؤ: چڼکاوېدُونکې)]-اُوبۀ چڼکاؤ کېدُونکے-اُوبۀ ترمکه کېدُونکے-اُوبۀ پُوژولے کېدُونکے.

**چَڼل** :- (چ+نْ+ړ+لْ)-[پ-مص-مت]-چاڼ کول-د پروېزې نه ايستل-صفا کول

**چڼول** :- (چ+نْ+ړ+و+ل)-[پ-مص-مت]-(۱) ګوډ کول. (۲) صفا کول-اچې کول-پاکول. (۳) مالوچ ډنډت کول. (۴) انتخاب کول-چُوڼ کول.

**چَڼونکے** :- (چَ+نْ+ړُو+نْ+کے)-[پ-فاع-مذ-وا-ج: چڼونُکي (مؤ: چڼونُکې)]-صفا کوونُکے-اچې کوونُکے-چڼوُونکے.

**چَڼونه** :- (چَ+نْ+ړ+و+نه)-[پ-حمص](۱) ګوډ کونه. (۲) صفا کونه-اچې کونه. (۳) مالوچ ډنډت کونه. (۴) انتخاب کونه، چُوڼکونه.

**چَڼوُونکے** :- (چَ+نْ+ړ+وُو+نْ+کے)-[پ-فاع-مذ-وا-ج: چڼوُونکي-(مؤ: چڼوُونکې)]-(۱) ګوډ کوونُکے (۲) صفا کوونُکے- اچې کوونُکے. (۳) مالوچ ډنډت کوونُکے. (۴) انتخاب کوونُکے. چوڼ کوونُکے.

**چَڼوُنے** :- (چ+نْ+ړُو+نے)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: چڼوني] پروېزے-چاڼ کوُونے-صفا کوونُے-چڼوُنے.

**چَڼوُونے** :- (چَ+نْ+ړ+وُو+نے)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: چڼوُوني]و___ چڼونے.

**چڼه** :- (چ+نْ+ړه)-[پ-اِس-مؤ-وا-ج: چڼې]-يو قسم غله چې دال ئې ډېر طاقتور او خوندور دي.

چې د اوسپنې چڼې شوې پر چيچلې
خداے زده يخ کړل هغه غابښ کوموتر شو (حميد)

**چڼۍ** :- (چ+نْ+ړۍ)-[پ-اِس-مؤ]-د اوسپنې هغه پانه چې د لرګي د څيرلو په وخت کار ورکوي.

**چڼے** :- (چ+نْ+ړے)-[پ (سو) اِس-مذ]-د جال ټوکرې په اخره کښې چې ورته

جول وائي-درې ګوټه واړهٔ سُوري.

**چني اچول** :- (سو)-اص-ددوؤ کسانو په مېنځ کښې ورانے اچول څوك په خپلو کښې سره ورانول.

**چني پرېښودل** :- (سو) اِص-څهٔ کسریا نقصان پرېښودل.

**چنيے** :- (چ+ن+ړَے)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: چنيي]-طالب-طالب علم هغه هلك چې سبق وائي.

**چنيے** :- (چَ+نْ+ړَے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]د پيزارغړوندے.

**چنياسن** :- (چَ+نْ+ړ+يا+س+نْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس ص-مذ] و ـ چناسك.

**چنياسه** :- (چَ+نْ+ړې+د+لْ)-[اپ-مص لا]-(۱) ګوډ کېدل.(۲) صفا کېدل-اچې کېدل. (۳) مالوچ ډنډت کېدل. (۴) انتخاب کېدل-چوڼ کېدل. (۵) چاڼ کېدل.

که هـر څـو مې ابروې ځنې چنيږي
د مژګانو په شپشتو ئې غلبېل بنهٔ يم (حميد)

(۶) د چر چنې اواز. (۷) شور کېدنه.

**چَنېدنه** :- (چَ+نْ+ړې+د+نه)-[اپ-حمص]-(۱) ګوډ کېدنه. (۲) صفا کېدنه-اچې کېدنه. (۳) مالُوچ ډنډت کېدنه. (۴) انتخاب کېدنه. چوُڼ کېدنه(۵) چاڼکېدنه. (۶) شور کېدنه. (۷) د چر چنې اواز کېدنه.

**چَنېدُونکے** :- (چَ+نْ+ړې+دُو+نْ+کے)-[اپ-مـذ-وا-ج: چنېدُونکي (مؤ: چنېدُونکې)]-(۱) ګوډ کېدُونکے. (۲) صفا کېدُونکے. (۳) مالوچ ډنډت کېدُونکے. (۴) چاڼ کېدُونکے. (۵) چرچڼ اواز کېدُونکے. (۶) شور کېدُونکے. (۷) چُوڼ کېدُونکے-انتخاب کېدُونکے.

**چنغاله** :- (چَ+نْ+غا+له)-[اپ-اِس-مؤ-وا-ج: چنغالې]-چنغله.

څو دنيا وته مريُونه وي خوشحال
شازلميوته د بوبو چنغاله شي

**چَنغړک** :- (چَ+نْ+غ+ړَ+كْ)-[اپ-اِس-مذ-وا-ج: چنغړکُونه] چمغړك-غاړه-مړى.

که اُوبهٔ دې د نجيل د منګي وڅښې
سـتا دې اوخېژي دانـه په چنغړك (خوشحال)

**چنغلبازي** :- (چَ+نْ+غَ+لْ+با+زِيْ)-[اپ (يوسف)-اِس-مؤ]-د کوژدن د نکاح نه پس د چنغول د چنغلې د پلار کور ته تلل او هلته د هغې د مور په صلاح ورسره ليدل کتل کول.

**چنغول** :- (چَ+نْ+غو+لْ)-[اپ-اِس-مذ]هغه زلمے چې جينۍ ورته په نُوم شوے وي.

**چَنګ** :- (چَ+نْ+ګْ)-[فا-اِس-مذ-وا] يو قسم ساز

ويـر ژړلـوته پـه لاس چـنګ و رباب کا
چې ئې کښېنوي په غولې باندې ورا عشق (حميد)

**چُنګابښ** :- (چُ+نْ+ګا+س يا ګا+خ)-[اپ-اِس-مذ]-کُوني کبر- چُنګښ-چُونګابښ.

که توبرے له زخمه نهٔ خېژي چنګابښ مې
بـانـدې وتـړه هـالـه بـه شي بدر (خوشحال)

**چَنګـړ** :- (چَ+نْ+ګَ+ړْ)-[اپ-اِس-مـذ-وا-ج: چَنګړيـان (مـؤ-وا-چَنګـړه-ج: چَنګړې)]-(۱) سپك سړے-بدخويه. (۲) مُصلي.

**چَنګـړے** :- (چَ+نْ+ګَ+ړَے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مـذ] چنګوړ-چندرو-د ماشومانو يوه لوبه.

**چُـنګښ** :- (چُ+نْ+ګ+شْ يا ګ+خْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مـذ]چُونګابښ-غټ چندخ.

**چَـنګښ** :- (چَ+نْ+ګَ+شْ يـا ګَ+خْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]چتکے-چندولے-چترو.

**چُنګښ** :- (چُ+نْ+ګَ+شْ يا ګَ+خْ)-[اپ (ظفر)-اِس-مذ]و ـــــــ چنګابښ.

**چُنګښـه** :- (چُ+نْ+ګ+شـه يـا ګ +خـه)-[اَف:پ (قـاموس) اِس مـؤ-وا-ج: چُنګښې]-چُونګښه-چيندخه.

**چَنګل** :- (چَ+نْ+ګُ+ل)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چنګله-چنګلونه]-د مزکې يوه ټوټه پينځلس جريبه مزکه.

**چنګل بازۍ** :- (چنګل+با+زۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] چُغلبازۍ.

**چنګن** :- (چ+نْ+ګَ+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-(۱) نجيل-کنجوس. (۲) زر ژړېدونکے.

**چَنګـو** :- (چَ+نْ+ګُو)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مـذ]-يـو قسم حلال مـرغے چې ښکار ئې کولے شي.

**چنګوټے** :- (چ+نْ+ګـو+ټے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چنګـوټي چنګوټيـان (مـؤ-وا: چنګـوټۍ-ج: چنګوټيـالې)] (۱) د ځنـاور بچے-چنګوړے. (۲) ورکوټے ماشوم.

**چَنګـورے** :- (چَ+نْ+ګُو+رے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چنګـوري] د کانې يا د بم ټکړه.

**چَنګوړ** :- (چَ+نْ)ګو+ړْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-چندرۍ-يوه لوبه.

**چَنګـورے** :- (چَ+نْ+ګـو+ړَے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چنګـوړي-چنګوړيان (مؤ-وا:چنګوړي-ج: چنګوړيانې)] وــــــــــ چنګوټے.

**چَنګـوړے** :- (چَ+نْ+ګُو+ړے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج:چنګـوړي] د شولو ګېډے يا څېټے.

**چنګـولي** :- (چ+نْ+ګُـو+لِيْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـؤ]-د غنمـو څېټـې يـا ګېډې.

**چنګولي کول** :- (اَف)-اِص-د غنمو څېټې جوړول-د غنمو ګېډې جوړول.

**چنګه** :- (چ+نْ+ګه)-[هندکو-ص-مؤ]-ښهٔ-غوره

په قسمت نصيب راضي شه علي خانه!
ازلي برخې څوك چنګه وي څوك منده

**چَنګۍ** :- (چَ+نْ+ګۍ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ]-چندرۍ.

**چنګۍ** :- (چ+نْ+ګۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] يو قسم خړه وړه چرچڼه.

**چَنګے** :- (چَ+نْ+ګے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-کوږ سترګے-بېنګے-چغر.

**چنګيتاز** :- (چُ+نْ+ګِيْ+تا+زْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-کوشش-لپ څپ.

**چُنوسکے** :- (چ+نُو+س+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چنوُسکي (مؤ: چنوُسکې)]-نجيل-کنجوس.

**چنوغزه** :- (چ+نو+غْ+زه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] مچلوغزه-مچوغنه.

**چنه** :- (چ+ن)-[اپ-اِس-مؤ-وا-ج:چنې]-(۱) د دېوال ګوټ. (۲) مرسته.

**د چا تـر چنې لانـدې کېـدل** :- (اِص)-د چاپـه سيمه کېـدل-د چا د سوري لانـدې راتلل.

**چَنۍ** :- (چَ+نۍ)-[اپ-اِس-مؤ]-هغه سپين شان پُونۍ يا ترېږ چې په سخته يخنۍ کښې پرېوزي-پخنۍ.

**چَني پرېوتل** :- (اِص)-په سخته يخنۍ پخنۍ پرېوتل.

**چني وهل** :- (اِس)-پخنۍ وهل-ويخنۍ په وجه بُوټي وچېدل-د يخنۍ په وجه بوُټو ته نقصان رسېدل.

**چنې** :- (چَ+نې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چنیان-چنیٖ]اسُور سپین بخن اَس.

**چَنې** :- (چَ+نَې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج:چنیٖ]کاسه-تهوتیې-کونډۍ-پیاله.

**چَني خېل** :- (چَ+نِيْ+خېْ+لْ)-[پ-اِس معرفه]-د کوهاټ په ضلع کښې د کرك په تحصیل کښې د یو کلي نوُم.

متل: خره خره! ورې مې نۀ که چني خېل مې گټې.

**چَنیوټ** :- (چَ+نْ+یو+ټْ)-[اِس معرفه]-په پنجاب کښې د یو ځاے نوم.

**چَو** :- (چَو)-[پ-اِس-مذ-وا-ج:چوُونه] (۱) چاؤد-درز-چَود. (۲) د دوؤ غرُونو په مېنځ کښې تنگه لار. (۳) د نهر یا لښتې په پوله کښې درز را تلل.

**چُو** :- (چُوْ)-[پ-اِس-مذ]-چُف-دم.

**چو** :- (چو)-[اَف:پ (قاموس) اِس صو] (۱) د اُوښ د کښېنولو یا بېتولو اواز.

وصل مینه کښې سکته سکون ته وائي

لکه چـوشي قافله چې پـربېگاه شي (محمد شاه خیال)

(۲) ایسارتیا-بندېز. (۳) د اَس د شړلو اواز.

**چو کول** :- (اَف) اِص-(۱) اوښ کښېنول یا بېتول. (۲) اَس شړل.

**چو کېدل** :- (اِص)-(۱) اُوښ کښېناستل یا بېتېدل. (۲) اَس شړلے کېدل.

**چوار** :- (چْ+وا+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-اوېزان-اَوېزاند-ځلېدلے.

**چوارول** :- (چْ+وا+ر+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت] اَوېزاندول-للول.

**چوارونه** :- (چْ+وا+ر+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-اَوېزاندونه-للونه.

**چـوارووُنکي** :- (چْ+وا+ر+وُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس فـاع-مـذ-وا-ج: چوارووُنکي (مؤ: چوارووُنکې)] اوېزاندُونکے للووُنکے.

**چُواره** :- (چْ+وا+ره)-[پ-ه: چهوارا-اِس-مؤ-وا-ج: چُوارې]-وچې کجوره.

**چواري** :- (چ+وا+رِيْ)-[پ-اِس-مؤ]-وچې کجوره چې سُورے په کښې وکړے شي. او د ماشوم په غاړه کښې په مزي کښې یے واچوي چې هغه یے د چُوسنې په ډول چُوپي.

**چـواري شُـونډي** :- (اِص)-د خرمـا یـا کجـورے پـه شـان شـونډے-خـوږے شونډے.

ټپه: رنځوره یاره رب د جوړ کړه

زۀ چوارے شونډې په خولۀ کښې درکومه!

**چوارېدل** :- (چْ+وا+رِيْ+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص لا]-اَوېزانېدل-للېدل.

**چوارېدنـه** :- (چ+وا+رِي+د+نـه)-[اَف:پ (قـاموس)-حمـص]-چوارېـدۀ-للېـدۀ-اَوېزانېدنه.

**چوارېـدُونکي** :- (چْ+وا+رِي+دُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس) مـف-مـذ-وا-ج: چوارېدُونکي (مؤ: چوارېدُونکې)] اَوېزانېدُونکے-للېدُونکے.

**چوارېدۀ** :- (چْ+وا+رِي+دۀ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و_____ چوارېدنه.

**چـواړي** :- (چْ+وا+ړَے)-[پ-اِس-مـذ-وا-ج: چُـواړي]-(۱) مُصـلي-بهنگـي. (۲) سخا-ناپاك-گنده. (۳) تورمخے.

**چوب** :- (چو+بْ)-[فا-اِس-مذ]-لرگے.

ستا له تورو شهلا سترگوئې سیالي کړه

نرگس ځکه کښېنبود سرد دار په چوب (خوشحال)

**چوباره** :- (چو+با+رَه)-[ه-اِس-مؤ-وا-ج:چوبـارې]-بالاخانـه-د مکـان د پاسـه کوټه.

**چـوبړن** :- (چـو+ب+ړ+نْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-(مـؤ:وا-چوبړنـه-ج: چوبړنې)]-ذلیل سړے-جاهل-کمینه.

**چوپاتکـه** :- (چو+پا+ت+کـه)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـؤ-وا-:چوپـاتکې] د انځیرانو دگړدولو یا ټولولو آله.

**چوپـار** :- (چو+پـا+رْ)-[پ (ظفـر)-اِس-مـذ-وا-ج: چوپارونـه]-چوپـال-د کلـي د خلقو د غُنډېدو ځاے-دپنچایت د ناستے ځاے.

**چوپال** :- (چو+پا+لْ)-[ه-اِس-مذ] و_______ چوپار.

**چوپـان گرمـگ** :- (چو+پـا+نْ+گَ+رْ+مَ+گْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]یو ځنگلي بُوټے.

**چوپته** :- (چو+پَ+ته)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج:چوپتې]-هغـه لرگـے چې د دېوال د محکمتیا دپاره په کښې ورکولے شي.

**چُوپر** :- (چُوْ+پ+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-(مـؤ-وا: چۀپره-ج: چوپرې)] برگ-دوه رنگے.

**چـوپړ** :- (چـو+پَ+ړْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چوپړُونـه]-خـدمت-نوکري.

**چوپړ** :- (چو+پَ+ړْ)-[ه-اِس-مذ] یوه لوبه.

**چـوپړن** :- (چـو+پْ+ړ+نْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-(مـؤ-وا:چوپړنـه-ج: چـوپړنې)] چُوپن-هغـه سـړے چـې سـترگې ئـې نمرتـه برېښـي-چُوچے-چوځړن.

**چوپړوال** :- (چو+پَ+ړ+وا+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ (مؤ-وا: چوپړوالـه-ج: چوپړوالے)] خدمتگار-نوکر.

**چوپړ وهل** :- (چو+پَ+ړ+و+ه+لْ)-[اَف:پ (قاموس)- مص-مت]-خدمت کول.

**چوپړوهُونکے** :- (چو+پَ+ړ+و+هُو+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس فاع-مذ-وا-ج: چوپړوهُونکي)]-خدمت کوُونکے.

**چوپړه** :- (چُوْ+پَ+ړه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج:چوپړې]زوړ پېـزار-زړه پنه.

**چـوپړې** :- (چـو+پْ+ړې)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـؤ] شـین پشـم شـان چـې د خوراك د څیز د سخاکېدو نه پس پرې راټوکېږي.

**چوپړۍ** :- (چو+پْ+ړي)-[پ (سو)-اِس-مؤ]-خونکۍ-خوُنه-څپر-کوډله-ساله.

**چـوپړے** :- (چـو+پْ+ړَے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج:چـوپړي (مـؤ-وا: چوپړې-ج: چوپړیانې)]-(۱) نوکر-خدمتگار-چُوچے-چُوپړ.

**چُوپل** :- (چُوْ+پ+لْ)-پ-مص-مت]-څۀ څیز په خُولې کښې زبېښل-ژویل.

**چُوپلـے** :- (چُـوْ+پ+لے)-[پ-مـف-مـذ-وا-ج: چُـوپلي (مـؤ: چُـوپلې)]-زبېښـلے-ژویلے.

**چُوپن** :- (چُوْ+پَ+نْ)-[پ-اِس-مذ]-و_______ چُوپړن.

**چُوپنۍ** :- (چُوْ+پْ+نْ+ړې)-[پ (گن)-اِس-مؤ]-خوږې گولۍ-پېپرمنټ.

**چُوپنے** :- (چُوْ+پ+نْ+ړے)-[پ (گن)-اِس-مذ-وا-ج:چوپني]-د پاستۀ لرگي نه جوړ څیـز چـې مـا شومانو تـه د غاښـونو د وتـو نـه وړانـدې پـه لاس کښـې ورکولے شي. چې هغه خولۀ پرې ډکوي.

**چُوپنه** :- (چُوْ+پ+نه)-پ-حمص] زبېښنه-ژوینه.

**چُوپنے** :- (چو+پَ+نے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] د صابون ځگ.

**چُوپیُونکے** :- (چُوْ+پُو+نْ+کے)-[پ-فاع-مذ-وا-ج: چُوپیُونکي (مؤ: چُوپیُونکې)]-زبېښونکے-ژویُونکے.

**چوت** :- (چْ+و+ت)-[پ (سو)-ص-مذ]-اوچت-رنگ-چگ-جگ.

**چوتي سترگې** :- (سو) اِص-اوچتې سترگې-رُوڼ مخ-ویاړ-فخر.

**چُوت** :- (چُوْ+تْ)-[ه-اِس-مذ]-کُس-د زناناؤ د تشو متیازو ځاے.

چې د پلار په بدګوي سر شي پوټ
صد لعنت د دۀ د مور په ګنده چُوت (خوشحال)

**چوَتار** :- (چَو+تا+رْ)-[اِپ-اُر: چوتاره-اِس-مذ]-(۱) یو ساز. (۲) اُوږده خبره. (۳) چارسوتي کپړه.

تر وېـښـتـۀ ئې ملانرې
تن ئې لاتر سپین چوتار ښۀ (خوشحال)

**چوتاره وهل** :- (سو) اِص-خبره اُوږدول.

**چوتے** :- (چو+تے)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج:چوتي] (۱) ورکوټے لنګ چې ایله ستر پرې پټ وي. دا اکثر کشتئ یا لوبې ته تړلے کېږي. (۲) هغه رسئ چې د اُوښ د بار تړلو د پاره استعمالېږي.

**چوتے تړل** :- (اِص)-د کشتئ یا لوبې د پاره ځان تیارول-چوتے وهل.

**چوتے خلاصول** :- (اِص) (۱) لوبه بس کول. (۲) پړه منل- هار تسلیمول.

**چوتے وهل** :- (اِص) و_______ چوتے تړل.

**د چوتي یار** :- (اِص)-زړۀ ته نژدې یار- خوږ ملګرے-وفادار اشنا.

**چُوتیا** :- (چُوْ+تْ+یا)-[ه-اِس-مذ]-(۱) ګانډُو-کُوني. (۲) بې اعتباره-ناکاره.

**چُوتیـاتوب** :- (چُوتیـا+تو+بْ)-[اِپ-اِس-مـذ]-(۱) ګانـډُوتوب-کُـوني تـوب. (۲) بې اعتباري.

**چُوټ** :- (چُوْ+ټْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ-وا-ج: چوټان]-چیټ-یو قسم کپړه.

**چـوټ** :- (چـو+ټْ)-[اَف-پ (قاموس)-اِس-مـذ]-(۱) فکـر-اندېښـنه. (۲) تـاوان. (۳) کافي- بس- پوره. (۴) ګذار-حمله. (۵) سخ-اعتراض.

**چوټ اوښتل** :- (اَف) اِص- تاوان کېدل- نقصان کېدل.

**چوټ رَسول** :- (اِص)-تاوان رسول- تکلیف ورکول.

**چوټ کول** :- (اِص)-(۱) ګذار کول- حمله کول. (۲) اعتراض کول.

**چوټ موندل** :- (اِص)- تاوان موندل- نقصان کېدل.

**چوټ وهل** :- (اَف) اِص-فکر کول-اندېښنه وهل.

**پـه اول چـوټ کنبـې مـاتول** :- (اَف) اِص- پـه اول ګـذار کنبـې وړل. پـه اولـه حملـه کنبې ماتول. په اول چوټ کنبې وړل.

**په اول چوټ کنبې وړل** :- (اَف)-اِص، و_______ په اول چوټ کنبې ماتول.

**چوټنـدار** :- (چـو+ټَ+نْ+دا+ر)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]- تخمینـه-انـدازه-قیاس-اټکل- جاج.

**چوټول** :- (چو+ټ+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص مت]-چوټ کول-وړل-ګټل.

**چوټونه** :- (چو+ټ+و+نه)-[اَف:پ (قاموس) حمص] وړنه-ګټنه.

**چوټوونکے** :- (چـو+ټَ+وُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس) اِس فـاع-مـذ-وا-ج: چوټوونکي-(مؤ: چوټوونکې) وړونکے ګټونکے.

**چوټه** :- (چو+ټَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-(۱) عـلاج-غمخوري. (۲) پـه یو مخ- په مخه.

**چوټه**:- (چو+ټه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-(۱) عـلاج-غمخوري. (۲) پـه یو مخ- په مخه.

**چوټه** :- (چ+وَ+ټه-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج:چوټې]-ځپلی- پېـزار- کېړئ.

**د چوټي تر بنده رسول** :- (اَف) اِص-(۱) د ځپلئ بند ته رسول. (۲) یـوه خبره تر اخري حده رسول.

**چوټئ** :- (چو+ټئ)-[ه-اِس-مذ] کمڅئ-د سر وېښتۀ.

**سر چوټئ کول** :- (اِص)-کمڅئ کول.

**چوټېدل** :- (چو+ټې+د+ل)-[اَف:پ (قاموس)-مص لا]-(۱) پوره کېدل- پـه مقابلـه یا جنګ کنبې برابرېدل. (۲) وړلے کېدل- تښتولے کېدل.

**چوټېدنــه** :- (چـو+ټې+د+نــه)-[اَف:پ (قــاموس) حمـص]-(۱) پُـوره کېدنـه- برابرېدنه. (۲) وړلے کېدنه. تښتولے کېدنه.

**چوټېـــدُونکے** :- (چـــو+ټې+دُو+ن+کے)-[اَف:پ (قـــاموس) مـــف-مـــذ-وا-ج: چوټېدُونکي-(مؤ: چوټېدُونکې)]-(۱) پوره کېدُونکے-پـه مقابلـه کنبـې برابرېدُونکے. (۲) تښتولے کېدُونکے. وړلے کېدونکے.

**چوچ** :- (چو+چ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-رسم-عادت-رواج-دود دستور.

**چُوچاړے** :- (چُوْ+چا+ړے)-[اِپ-اِس-مذ]-ټاپو-جزیره.

**چُوچک** :- (چُوْ+چ+کْ)-[اِپ-اِس-مذ]-(۱) چرګوټے-چرګوړے. (۲) ورکوټے هلك چې وران کارے وي.

**چُوچنے** :- (چُوْ+چ+نَے)-[اِپ-(صوابي)-اِس-مذ]-چُوخنے.

**چُوچُو** :- (چُوْ+چُوْ)-[اِپ-اِس-مذ]- د ماشومانو په ژبه چرګ، چرچنې یا مرغئ ته وائي.

**چُوچـــوړے** :- (چُوْ+چُـــوْ+ړے)-[اِپ-اِس-مـــذ-وا-ج:چُوچُـــوړي]- چوچـــك- چرګوړے- چوزے- ورکوټے مرغے- چُوچونے.

**چُوچونے** :- (چُوْ+چُوْ+ن+ړے)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج: چُوچُوني]و ___ چُوچوړے.

**چوچے** :- (چُوْ+چے)-[اِپ-اِس ص-مذ]- و _______ چوپړن.

**چُوچــے** :- (چُــو+چے)-اَف: پ (قــاموس) اِس-مــذ-(مؤ:چوخــه)]-چــوغ-کــوږ-ملاټیټے-ټوُغ.

**چُوخــت** :- (چُــوْ+خْ+تْ)-[اِپ-اِس-مـذ-(مـؤ:وا: چُوختــه-ج:چُـوختې]-جخـت-پیوست.

**چوخته** :- (چو+خْ+ته)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: چوختې] ډوغل-غار.

**چُوخړکه** :- (چُو+خْ+ړَ+که)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-کروړه-کیرړه-یوه ونه.

**چُوخړن** :- (چُوْ+خْ+ړ+نْ)-[اِپ-اِس ص-مذ (مؤ-وا: چُوخړنه ج: چوخړنې)]- و _____ چُوپړن.

**چُوخړي** :- (چُوْ+خ+ړيْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-چخړي.

**چوخشُو** :- (چو+خْ+شُوْ)-[اِپ (ب،خ-اِس-مذ]-و_______ چکښو.

**چُوخښکے** :- (چُـوْ+خ+ش+کے یـا خ+خْ+کـے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چُوخښکي] چخاښکے- د غوږ په طرف د سترګو ګُټ.

**چُوخکه** :- (چُوْ+خَ+که)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-چُوکه-هغـه لښـته چې سیم په کښې وي او غوایۀ یا خرۀ پرې شړلے شي.

**چُوخَل** :- (چُوْ+خَ+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] چُوغل.

**چُوخله** :- (چُوْ+خَ+له)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ]-چخله.

**چُوخلئ** :- (چُوْ+خ+لئ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]اُوچته کوله-چګه ټوپئ.

**چُوخلے** :- (چُوْ+خْ+لے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چُوخلي] هغه تېـز لرګے چې د جوارو وږي پرې ټکوي.

**چُوخمخے** :- (چُوْ+خْ+م+خے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چـوخمخي-مؤ: چُوخمخې]-کور کورے- برګ مخے-هغه څوك چې ننکئ ئې په مخ راختې وي.

**چُوخنې** :- (چُوْ+خْ+نْ+ړيْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-چخړي.

**چُوخنے** :- (چُوْ+خ+نَے)-[اِپ-اِس-مذ (مؤ:چوخني)]-چوپړن.

**چوخول** :- (چو+خ+و+لْ)-[اَف: پ (قاموس) مص مت] چوخ کول-راټیټول-را ګوړ ګوتول.

**چُوخول** :- (چُوْ+خ+و+لْ)-[اپ-مص مت]-چُوکه کول- سُوخول.

**چوخونه** :- (چو+خ+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-راټیټونه-راګوړ ګوتونه.

**چُوخونه** :- (چُوْ+خ+و+نه)-[اپ-حمص]-چُوکه کونه- سُوخونه.

**چُوخو نے** :- (چُوْ+خُوْ+نے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-هغـه چُوکـه چې څناور پرې شړلے شي.

**چوخوُونکے** :- (چـو+خ+وُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-اس فـاع-مـذ-وا-ج: چوخوُونکي (مؤ: چوخوُونکې)] راټيټوونکے-راګوړ ګوتوونکے.

**چُوخووُنکے** :- (چُوْ+خ+وُوْ+نْ+کے)-[اپ-اس فاع-مذ-وا-ج: چوُخوونکي- (مؤ: چوُخوونکې)]-چوکه کوُونکے-سُوخووُنکے.

**چوخـه** :- (چو+خـه)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـؤ]-کـوړوالے-ټيټـوالے د څيـز د اختلو د پاره شا ټيټونه.

**چوخه ورکول** :- (اَف) اص-تکيه ورکول- شا ورکول-اوږه ورکول.

**چوخه** :- (چو+خه)-[اَف:پ (قاموس) اس-مؤ-وا-ج:چوخې]-چُوغه مشوکه.

**چُوخې** :- (چُوْ+خې)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]د لرګي چوکه.

**چُوخے** :- (چُوْ+خے)-[اَف:پ (قاموس) اس-مذ-وا-ج: چوخي-چوُخيـان (مـؤ: چوخې)]-(۱) کـوُبړے-شـاټيټے. (۲) بـرګ مخـے. چې مـخ ئې پـه ننکو وهلے وي.

**چُوخي چُوخي** :- (چُوْ+خِي+چُوْ+خِيْ)-[اَف-:پ (قاموس)-اس-مذ]-داغ داغ.

**چُوخي چُوخي کول** :- (اَف)اص-داغ داغ کول.

**چُوخي چُوخي کيدل** :- (اَف)-اص-داغ داغ کېدل.

**چوخېدل** :- (چو+خې+د+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص لا]-ټيټېدل-د څـهٔ پوچ د بـار بار را اوچتولو د پاره ملا کږول.

**چُوخېدل** :- (چُوْ+خې+د+لْ)-[اپ-مص لا]-چُوکه کېدل-سُوختېدل.

**چوخېدلے** :- (چو+خې+دَ+لے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: چُوخېدلي (مؤ چُوخېدلې)]-چُوکه شوے-سُوخېدلے.

**چوخېدنګ** :- (چو+خې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و___ چوخېدنه.

**چُوخېدنګ** :- چُوْ+خې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و___ چُوخېدنه.

**چوخېدنه** :- (چو+خې+د+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-چوخېدنګ-چوخېدهٔ-ټيټېدنه-ملا ټيټونه.

**چُوخېدنـه** :- (چُوْ+خې+د+نـه)-[اپ-حمـص]-چوخېـدنګ-چُوخېـدهٔ- چُوکـه کېدنه- سُوخېدنه.

**چوخېـدُونکے** :- (چـو+خې+دُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-مـف-مـذ-وا-ج: چوخېدونکي-(مؤ: چوخېدُونکې)]-ټيټيدُونکے-ملا ټيټوُونکے.

**چوخېـدُونکے** :- (چُوْ+خې+دُوْ+نْ+کے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: چُوخېـدُونکي (مؤ: چوخېدُونکې)-چوکه کېدُونکے-سُوخېدونکے.

**چوخېدهٔ** :- (چو+خې+دهٔ)-[اَف:پ (قاموس) حمص] و_____ چوخېدنه.

**چوخېدهٔ** :- (چُوْ+خې+دهٔ)-[اَف:پ (قاموس) حمص] و_____ چوخېدنه.

**چوخېدهٔ** :- (چُوْ+خې+دهٔ)-[اپ حمص] و_______ چُوخېدنه.

**چودريتـــوب** :- (چودري+تــو+ب)-[اپ-اِس ص-مــذ]-(۱) ملکـــي-مشـــري. (۲) معتبري-څان لوے شارنه.

**چُـور** :- (چُـوْ+رْ)-[اپ-اِس-مـذ-وا-ج: چُورونـه]-(۱) تـالا-لُـوټ- تـالان. (۲) ريـز مريز- ټوټې ټوټې. (۳) بالکل- ببخي. (۴) هغه سُورے چې په بند کنبې د اُوبو د زوره وشي. (۵) هغه تېرهٔ کاڼے چې د ضرورت په وخت ئې شپانهٔ د چړې په ځاے استعمالوي. (۶) د غرهٔ دره (۷) دُوړه- پوډر.

**چُور جوړول** :- (اص)-چُور ګډول- تالان جوړول- لُوټل- چُور کول.

**چُور کول** :- (اص)-(۱) تالاکول- لُوټ کول. (۲) ريز مريز کول- ټوټې ټوټې کـول. (۳) د اُوبو په بند کنبې سُورے کول.

**چُور کېدل** :- (اص) (۱) تالاکېدل. (۲) ريـز مريـز کېـدل. (۳) پـه بنـد کنبـې د اُوبـو سُورے کېدل.

**چُور ګډول** :- (اص)- و________ چُورجوړول.

**چـوارهي لار** :- (چَـو+را+هِيْ+لا+رْ)-[اپ-اِص) چلنـده لار- عامـه لار-چلنـي لار- بادشاهي لار.

**چورباز** :- (چو+رْ+با+زْ)-[اپ (ګن) اِس ص-مذ-وا-ج:چـور بـازان]- هلك بـاز- بـد عمله سړے.

**چُوربل** :- (چُوْ+رْ+بَ+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چُوربلونه]-چربـل- د بزې د وژغنونه جوړ ترسبرے يا پړے.

**چوربور** :- (چو+رْ+بو+رْ)-[اپ (صوابي ګدون)ص- په فخر کنبې- په غرور کنبې.

**چـورت** :- (چُـوْ+رْ+تْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-(۱) فکـر-اندېښنـه. (۲) د نسوارو يوه چُونډی.

**چورت وهل** :- (اَف) اص-اندېښنه کول-فکر کول.

**چُورتک** :- (چُوْ+رْ+تَ+کْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]- يو قسم شينکے.

**چُورتکي** :- (چُوْ+رْ+ت+کِيْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-فکـرمن-اندېښـمن- چُورتي.

**چُورتي** :- (چُوْ+رْ+تِيْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ] و_______ چورتکي.

**چُورچکا** :- (چُوْ+رْ+ج+کا)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ]- يوه کلمـه چې دا ګابګا سره استعمالېږي دا يوه لوبه ده.

**چـور چُـورک** :- (چُوْ+رْ+چُـوْ+رَ+کْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-د اُوبـو مـور- کرړے.

**چُورچوری** :- (چُوْ+رْ+چُوْ+رئ)-[اَف:پ (قاموس) اس-مؤ]-چرچوری.

**چُورړنـک** :- (چُوْ+رْ+چُـوْ+رَ+کْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-]-د اُوبـو مـور- کرړے.

**چُورچوری** :- (چُوْ+رْ+چُوْ+رئ)-[اَف:پ (قاموس) اس-مؤ]-چرچوری.

**چُورړنـک** :- (چُـوْ+رْ+ړَ+نْ+ګْ)-[اپ-(پ،ج)-ص-مـذ (مـؤ-وا: چورړنګـه-ج: چورړنکې)]-نرے چپليت.

**چُورلاؤ** :- (چُوْ+ر+لا+ؤ)-[اپ-اس-مذ-وا-ج:چُولاوُونه] مشين.

**چُورلټ** :- (چُوْ+رْ+لَ+ټْ)-[اپ-اِس-مذ]-بالکل- بخي- سکټ- سراسر.

چـــې ګـولی د بېلتانهٔ شوه په مالټ
په يو ځل مې ئې ملا ماته کړه چورلټ (علي خان)

**چُورلټ ماتول** :- (اص) بالکل ماتول- ببخي ماتول.

**چُورلټ ماتېدل** :- بالکل ماتېدل- ببخي ماتېدل.

**چُورلـک** :- (چُـوْ+رْ+لَ+کْ)-[اپ-اِس-مـذ-وا-ج: چُورلکونـه] څـرخ- پېـر- تـاؤ- ګردش.

**د مزکې چُورلک** :- اص-د مزکې ګردش-د مزکې څرخ.

**چُورلکه** :- (چُوْ+رْ+لَ+که)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-(۱) د پېـزار پځکے. (۲) د لرګي څرخ.

**چُورلکے** :- (چُوْ+رْ+لُ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] -(۱) چُورلکه د پېزار پڅکے. (۲) د ښځې د مخصوص ځاے خنجکے.

**چورلنده** :- (چُوْ+رْ+لَ+نْ+دَه)-[اِپ (سو)ص]-ګرځېدُونکے- څرخېدُونکے- تاوېدُونکے.

**چُورلندے** :- (چُوْ+رْ+لَ+نْ+دَے)-[اِپ-اِس-مذ] -چُورلندے- هغه د لرګي څرخ شان چې ماشومان لوبې پرې کوي.

وم ساکن بدن متحرك په پېښو د عقل
دواړه را کښېږ جمع وُو په شان د چُور لندي (علي خان)

**چُورلنډے** :- (چُوْ+رْ+لَ+نْ+ډے)-[اِپ-اِس-مذ-وا-ج: چُورلنډي]و___ چُورلندے.

**چُورلول** :- (چُوْ+رْ+ل+و+لْ)-[اِپ- مص مت] -(۱) څرخول-ګردش ورکول-څرخ ورکول- تاوول. (۲) ګډول.

بیابان کښې د هجران د وصل سرائې ته
اَس د عقل چُور لوم ولې تر کومه (علي خان)

**چُورلوے** :- (چُوْ+رْ+ل+وَ+لے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چُورلولي (مؤ: چُورلولې)]-(۱) تاؤ ورکړے-ګردش ورکړے-څرخولے. (۲) ګډ کړے.

**چُورلونګ** :- (چُ+رْ+ل+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و ___ چُورلونه.

**چُورلونه** :- (چُوْ+رْ+ل+و+نه)-[اِپ-حمص] -(۱) چُور لونګ- تاؤ ورکونه-څرخونه ګردش ورکونه. (۲) ګډَونه.

**چُورلوُونکے** :- (چُوْ+رْ+ل+وُ+نْ+کے)-[اِپ-اِس فاع-مذ-وا-ج: چورلوُونکي (مؤ: چُورلوُونکې)]-(۱) ګردش ور کوُونکے- تاؤ ورکوُونکے-څرخوُونکے (۲) ګډوُونکے.

**چُورله** :- (چُوْ+رْ+لَه)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ-وا-ج: چورلې]-(۱) د اُوبو مورې. (۲) سُولوے غوز.

**چُورلے** :- (چُو+رْ+لے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چُورلي]-(۱) د مشین څرخ. (۲) د ماشومانو د لوبې چُور لندے. (۳) چارمغز.

**چورلېځے** :- (چُو+رْ+لې+د+زے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] -هغه مېخ چې مشین یا څرخ پرې تاوېږي.

**چُورلېدل** :- (چُوْ+رْ+لې+د+لْ)-[اِپ-مص لا] -(۱) څرخ خوړل-تاوېدل-ګردش کول. (۲) ګډېدل.

**چُورلېدنګ** :- (چُوْ+رْ+لې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و- چُورلېدنه.

**چُورلېدنه** :- (چُوْ+ر+لې+د+نه)-[اِپ-حمص] -(۱) چُورلېدنګ- چورلېدهٔ- تاوېدنه-ګردش کونه- څرخ خوړنه. (۲) ګډېدنه.

**چُورلېدُونکے** :- (چُوْ+ر+لې+دُ+نْ+کے)-[اِپ-فاع-مذ- وا-ج: چُورلېدُونکي]-(۱) ګردش کوُونکے- څرخ خوړونکے- تاوېدُونکے. (۲) ګډېدُونکے.

**چورلېدهٔ** :- (چُوْ+رْ+لې+دهٔ)-[اِپ-حمص] و___ چُورلېدنه.

**چُورلے غرب** :- (چُوْ+رْ+لے+غ+رَ+بْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] مشین ګن.

**چُورلېونے** :- (چُوْ+رْ+لې+و+نَے)-پ-اِس ص-مذ-وا-ج: چُورلېوني- (مؤ: چُورلېونې)]-بالکل لېونے. ببخي لېونے-سکوټ لېونے.

**چُورمچور** :- (چُوْ+ر+مَ+چُوْ+رْ)-[اِپ-ص-مذ-(مؤ-وا: چُور مچوره-ج: چُور مچورې)]-ریز مریز-ذرې ذرې-ټوټې ټوټې- ببخې مات.

**چُورن** :- (چُوْ+ر+نْ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]-د اُوبو مورې.

**چُورن** :- (چُوْ+رَ+نْ)-[اِ-اِس-مذ] چُونډې- تلے- پکے-اُوړهٔ کړي داروچې د هضم د پاره ورکولے شي.

**چُورندک** :- (چُوْ+ر+نْ+دَ+كْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چُورندکان] چتے-چترکے.

**چورنګ** :- (چُوْ+ر+نْ+ګْ)-[اِپ (ظف)-اِس-مذ-وا-ج: چُورنګونه] (۱) په یو وار د ښاروي څلور واړه پښې پرې کول. (۲) زخمي-ژوبل- پرهر ژلے. (۳) تېغ- توره.

کـه ئـې لېـچـې د یـار تـورې دي د مصر
ورتـه کښېښـود علـي خـان چُورنـګ د زړهٔ

**چُورنګے** :- (چُوْ+رَ+نْ+ګے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چورنګیان] یو قسم مرغ یا بټېر.

**چُوره** :- (چُوْ+رَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] -د خوټې پرسوب- د هرنیا بیماري.

**چُوره کېدل** :- (اَف)-اص-د هرنیا بیماري کېدل.

**چُوره** :- (چُوْ+ره)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ-وا-ج: چُورې] -ډربدلے-ډارن- یرندُونکے.

**چُوره** :- (چُوْ+رَه)-[اِپ-اِس-مؤ] (۱) چیني- تري- شکره. (۲) بُراده- سفوف.

**چوره کول** :- (اص)- سفوف جوړول- وړول.

**چوره کېدل** :- (اص-سفوف کېدل. وړېدل.

**چورۍ** :- (چوْ+رۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] -د مچانو شړلو بېوزے چې د اَس د لکۍ نه جوړ وي.

**چورۍ** :- (چُو+رَۍ)-[اِپ (کوئټه) ه: چېوري-اِس-مؤ] -جینۍ-محبوبا.

د چورۍ پرېزه لوره
مزے تاو کړے چارګل (کاکړي لنډۍ)

**چُوري** :- (چُوْ+ري)-[اِپ-اِس-مؤ]-مېده شوے غوړاو خوږ خوراك.

**چُوري کول** :- (اص)مېده کول.

**چوري کېدل** :- (اص) مېده کېدل.

**چورے** :- (چُ+و+رَے)-[اِپ (ګن)-اِس-مذ]-توشه-توبره-خوراك.

**چُورے** :- (چُوْ+رَے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] -(۱)غـین-ذکـر. (۲) ګډېدُونکے. لختے-تتوے.

**چَوړ** :- (چَوْ+ړْ)-[اِپ-اِس-مذ] ویران-خراب-تباه-برباد.

**چَوړ کول** :- (اص)-ویرانول-تباه کول-بربادول-خرابول.

**چوړ کېدل** :- (اص) ویرانېدل-تباه کېدل- بربادېدل.

**کور چوړ کېدل** :- (اص) کور تباه کېدل-کور ورانېدل.

**چُوړ** :- (چُوْ+ړْ)-[اِپ-اِس-مذ] -(۱)د اُوبو د راغورزېدلو اواز. (۲) د دروازې یا د کټ چُوڼ. (۳) هغه درز چې په لرګي کښې په پانه جوړ شوے وي.

**چُوړ کېدل** :- (مر(اص)-جوړېدل-کښېته کېدل.

**چُوړاغ** :- (چُوْ+ړا+غ)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ-وا-ج: چُوړاغونه]-(۱) د کاني درز. (۲) د اُوبو لار.

**چُوړ چُوړک** :- (چُوْ+ړ+چُو+ړَ+كْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چُوړ چوړکان]-ورکوټے ماشوم.

**چُوړک** :- (چُوْ+ړ+كْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چُوړکونه] (۱) تاله- کُنجي. (۲) د دروازې اړم.

**چُوړکۍ** :- (چُوْ+ړ+کۍ)-[اِپ-اِس-مؤ]-وړه چاړهٔ.

**چُوړګه** :- (چُوْ+ړ+ګه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چوړګې] د اُوبو لـه کېله په مزکه کښې جوړ شوے درز.

**چُوړو** :- (چُوْ+ړُو)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-تبخك-شبزدو-چُوړے-یو قسم خړ رنګے مارغۀ-چې لکۍ ئې اوږده وي.

**چَوړول** :- (چَوْ+ړ+و+لْ)-[اپ- مص-مت]-ورانول-تباه کول- بربادول.

**چُوړول** :- (چُوْ+ړ+و+لْ)-[اپ-مص مت]-لړے لړے اوبۀ چړول، پیول یا تویُول.

**چوړول** :- (چُوْ+ړ+و+لْ)-پ (مر) مص مت]-کُوزول-کښته کول.

**چوړولې** :- (چُوْ+ړ+وَ+لې)-[اپ-مف-مؤ]-بیولے-توئې کړے-چړولے.

**چوړونګ** :- (چَوْ+ړ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس) حمص] و_____ چوړونه.

**چوړونګ** :- (چُوْ+ړ+وَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و_____ چُوړونه.

**چوړونه** :- (چَوْ+ړ+و+نه)-[اپ-حمص]-چوړونګ-تباه کونه-بربادونه.

**چوړونه** :- (چُوْ+ړ+و+نه)-[اپ-حمص]-چُوړونګ-لړې لړې اُوبۀ بیونه-تویونه.

**چوړونه** :- (چُوْ+ړ+و+نه)-[اپ (مر) حمص]- کوزونه- کښته کونه.

**چوړوُونکے** :- (چَـوْ+ړ+وُوْ+نْ+کے)-[اپ-اس فـاع-مـذ-وا-ج: چـوړوُونکي (مـؤ: چوړوُونکې)]-تباه کوُونکے-بربادوُونکے.

**چُوړوُونکے** :- (چُـوْ+ړ+وُوْ+نْ+کے)-[اپ-اس فـاع-مـذ-وا-ج: چُـوړوُونکي (مـؤ: چوړوُونکې)] اُوبۀ تویوُونکے- بیوُونکے- چړوُونکے.

**چُوړوُونکے** :- (چُـوْ+ړ+وُوْ+نْ+کے)-[اپ (مـر) اس فـاع-اس فـاع-مـذ-وا-ج: چُوړوُونکي (مؤ: جوړوُونکې)] کوزُوونکے-کښته کوُونکے-ښوړوُونکے.

**چُوړهار** :- (چُوْ+ړ+ها+رْ)-[اپ-اس صو-مذ]-د اُوبو د توئېدلو اواز-چړهار.

**چُوړَے** :- (چُوْ+ړَے)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: چوړیان (مؤ: چوړۍ)]- (۱) چواړے-بنګي-مصلي (۲) هغه کس چې د پانسۍ ورکولو په وخت د کوهي خرڅ تاووي.

**چوړے** :- (چُوْ+ړَے)-[اپ (ب)، خ) اس-مذ-وا-ج: چوړي]-چُوړو-یو خړ رنګے مرغے چې لکۍ ئې اُوږده وي.

شکره چُوړے نیسي زاڼې شنقر نیسي
شـرمخ بـیاڼ وهـي زمرے ایغرنیسي (خوشحال)

**چَوړېدل** :- (چَوْ+ړې+د+لْ)-[اپ-مص لا]-تباه کېدل- بربادېدل.

**چُوړېدل** :- (چُوْ+ړې+د+لْ)-[اپ-مص لا]-اُوبۀ توئېدل-چړېدل.

**چوړېدل** :- (چُوْ+ړې+د+لْ)-[اپ (مر)-مص]-کُوزېدل-کښته کېدل-چُوړ کېدل-ښوړېدل.

**چوړېدلې** :- (چُوْ+ړې+دَ+لې)-[اپ-مف-مؤ] بیېدلې-توئې شوے.

**چَوړېدنګ** :- (چَوْ+ړې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و___ چُوړېدنه.

**چَوړېدنه** :- (چَوْ+ړې+د+نه)-[اپ-حمص]-چوړېدنګ-چوړېدۀ-تباه کېدنه-بربادېدنه.

**چُوړېدنه** :- (چُوْ+ړې+د+نه)-[اپ-حمص]-چُوړېدنګ-چوړېدۀ-اُوبۀ توئېدنه-چړېدنه.

**چوړېدنه** :- (چُوْ+ړې+د+نه)-[اپ (مر)-حمص]-کوزېدنه-کښته کېدنه-چُوړېدۀ-ښوړېدنه.

**چوړېدُونکے** :- (چُوْ+ړې+دُوْ+نْ+کے)-[اپ (مر) فاع-مذ-وا-ج: چوړېدُونکي]-کُوزېدُونکے-کښته کېدُونکے-ښوړېدونکے.

**چَوړېدۀ** :- (چَوْ+ړې+دۀ)-[اپ-حمص]-و _____ چَوړېدنه.

**چُوړېدۀ** :- (چُوْ+ړې+دۀ)-[اپ-حمص]-و_____ چُوړېدنه.

**چوړېـل** :- (چُـوْ+ړ+ې+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-مـص مـت]- پـه سـرېښ یـا بـل لېسدارشیز دوه ښیزونه سره پېوست کول.

**چُوړیلے** :- (چُـوْ+ړ+ې+لے)-[اَف:پ (قـاموس)-مـف-مـذ-وا-ج: چـوړیلي (مـؤ: چوړیلې)]-په سرېښ سره دوه ښیزونه پېوست کړے.

**چُوړینـه** :- (چُوْ+ړ+يْ+نـه)-[اَف:پ (قـاموس)-حمـص]-دوه ښیزونـه پـه سرېښـو سره پېوست کونه.

**چُوړیُونکے** :- (چُوْ+ړ+یُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-فـاع-مـذ] پـه سـرېښ سـره دوه ښېزونه پېوست کوُونکے.

**چُوز** :- (چُوْ+ز)-[اپ-اس-مذ]-یو کلن باز.

**چَوزه** :- (چَو+زه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-د چرګ بچې-چرګوټې.

**چُوزه** :- (چُوْ+زه)-[اَف:پ (قاموس) ص-مؤ]-ښکلې ښځه- یے مخې جینۍ.

**چُوزے** :- (چُوْ+زے)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: چُوزي (مؤ: چوزۍ)]-نازك-چغزي.

**چُوزے** :- (چُوْ+زے)-[اپ (ګن)-اس-مذ-وا-ج: چُوزي]-چرګوړے-چرګوچے.

**چُوس** :- (چُو+سْ)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-(۱) بې قیمتـه ښیز- بې فائدې ښیز- ښیز. (۲) د ځناور لرې کُلمې. (۳) چُوسك-خساست.

**چُوس په کېه وهل** :- (اَف)-اِص- بخیلـي کـول-کنجوسي کـول-شومُتیا ښکاره کول.

**چُوس وهل** :- (اس-د خساست او شومتیا لـه کبلـه د ځکے پکے پـه لټـون کښې ځاے په ځاے ګرځېدل.

**د چوسـه مـردار سـنګ جـوړول** :- (اَف)-اِص-(۱) د چـوس نـه مـړه تېـره جـوړول. (۲) شومتیا او بخیلي کول.

**چوسـار** :- (چَو+سـا+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چوسـارونه]یو قسـم سوهان.

**چوستے** :- (چُوس+تے)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چوستي]-(۱) د ځناور لرې کلمې. (۲) د خېټې برنځ یا پرده.

**چُوس خور** :- (چُوس+خو+رْ)-اپ-اس ص-مذ-(مؤ-وا: چوس خوره-ج: چوس خورے)]-چُوسکن- شُوم-اُوږ سترګے- بخیل-اروا وړے.

**چُوسک** :- (چُـو+سْ+كْ)-[اپ (ب،خ)-اس-مـذ] چـوس-د څۀ ښیز تـلاش-چې بنده پرې اروا وړے **معلومېږي**.

**چُوسک وهل** :- (ب-خ)-اِص-و________ چُوس وهل.

**چُوسکن** :- (چُـو+سْ+كَ+نْ)-[اپ-(ب-خ)-اس ص-مـذ-(مـؤ-وا: چُوسـکنه-ج: چُوسکنے)]-چُوس خور-اوږسترګے-اروا وړے.

**چُوسـکنتوب** :- (چُو+سْ+كَ+نْ+تـو+ب)-[اپ (ب-خ)-ص] اروا وړي-چُـوس خوري.

**چُوسکونه** :- (چُوْ+س+ك+نَ+و+نـه)-[اپ (ب-خ)-حمـص]-اروا وړے کونـه-بـد خویه کونه- د چوس عادت په کښې پیدا کونه.

**چُوسـکوُونکے** :- (چُـوْ+س+ك+نَ+وو+نْ+کے)-[اپ (ب-خ)-فـاع-مـذ-وا-ج: چُوسـکوُونکي-(مـؤ: چُوسـکوُونکې)] اروا وړے کـوُونکے-د چـوس عادت په کښې پیدا کوُونکے.

**چُوسـکېدل** :- (چُـو+س+ك+نې+د+لْ)-[اپ (ب-خ) مـص لا]-اروا وړے کېدل-د چُوس عادت په کښې پیدا کېدل.

**چُوسکېدنه** :- (چُو+س+ك+نې+د+نه)-[اپ-(ب-خ)-حمص]-اروا وړے کېدنه- د چُوس عادت پیدا کېدنه.

**چُوسـکېدُونکے** :- (چُـوْ+س+ك+ئې+دُوْ+نْ+کے)-[اپ (ب-خ)-مـف-مـذ-وا-ج: چوسکېدُونکي-(مؤ: چوسکېدُونکې)]-اروا وړے کېدُونکے د چوس عادت اخستونکے.

**چُوسه** :- (چُو+سه)-[اَف:پ (قاموس)-ص]-سستي-ناراستي.

**چُوسی** :- (چُو+سَ+ی)-[اِپ (ب-خ)-اس-مؤ] -و______ چُښکې.

**چوښتې** :- (چُو+ښ یا خ+تې)-[اَف: پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چوښتي]-چوشتي-د بزې یاد نورو څلور پښو مور روډُونکې بچې.

**چوښکه** :- (چُو+ښ یا خ+که)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: چوښکې]-څخکوړې-سنت- کشکول.

**چوغ** :- (چو+غ)-[اَف:پ (قاموس)-ص]-(۱) چُوغ-چوخ-کوږ-تیت-چوغې-کړك. (۲) تنگ.

**چُوغ** :- (چُو+غ)-[اِپ (ب-خ)-ص] -و______ چوغ.

**چُوغالې** :- (چُو+غا+لې)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج:چوغالي]-(۱) د اوښانو تړلو ځای. (۲) د اوښ هغه پچې چې په یو ځای ئې کړې وي. (۳) د گنده اوبو ډوغل یا کندو.

**چُوغ بُوغ** :- (چُو+غ+بُو+غ)-[اَف:پ (قاموس)-اس صو-مذ]- چُوغ پُوغ- شور زوږ.

**چُوغ اچول** :- (اَف)-اص-شور زوږ کول-شور فریاد جوړول.

**چُوغ پوغ** :- (چُوغ+پُو+غ)-[اِپ-اس صو-مذ] - و______ چوغ بُوغ.

**چوغر** :- (چُو+غَ+ر)-[اِپ-ص-مذ-مؤ-وا: چُوغره-ج: چوغرې)] و ___ چغر.

**چوغړې** :- (چُو+غ+ړې)-[اَف:پ (قاموس)-ص-مذ]-غوړیدلې-ویږ-سپړدلې.

**چُوغ سترگې** :- (چُوغ+س+تَ+ر+گې)-[اِپ-اس ص-مذ-وا-ج: چوغ سترگي] هغه څوك چې سترگې ئې چغرې وي- چغر سترگې.

**چوغښکې** :- (چُو+غ+ښ یا خ+کې)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چوغښکي]-د سترگې غوږ پلوگوټ.

**چُوغك** :- (چُو+غَ+ك)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ] یو شینکې چې سره مېوه نیسي او مېوې ته ئې جنجوغې وائي-دا د دستونو په مرض کښې استعمالولې شي.

**چُوغکه** :- (چُو+غ+که)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ-وا-ج: چُوغکې] چرچڼه.

**چُوغکي** :- (چُو+غ+کي)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-چوغلي-غمازي.

**چُوغل** :- (چُو+غ+ل)-[اِپ-فا: چُغل-اس-مذ-وا (مؤ-وا: چُوغله-ج: چُوغلې)]-(۱) غماز-چغل خور. (۲) هغه غلبیل یا پرویزې چې سُوري ئې ارت وي.

**چُوغل**:- (چُو+غَ+ل)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ]-ښوندې-ښوښندې-یوه آله.

**چُوغلي** :- (چُو+غ+لي)-[اِپ-فا: چُغلي-اس-مؤ]-غمازي-چغلگري-خیرغلا-چُوغکي-مواسي.

**چُوغلي کول** :- (اص) غمازي کول-پشي شا خبرې کول.

**چُوغنه** :- (چُو+غ+نه)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مؤ]-کوتي-ډوغل-کوندرې-ډوغله.

**چُوغول** :- (چُو+غَ+و+ل)-[اِپ (ب-خ)-مص مت] تیتول-کړکول-کوږول- پتول.

**چُوغونه** :- (چُو+غَ+و+نه)-[اِپ (ب-خ) محص]-تیتونه-کړکونه-پتونه.

**چُوغوُونکې** :- (چُو+غَ+وو+ن+کې)-[اِپ (ب-ج) فاع-مذ-وا-ج: چوغوُونکي-(مؤ: چوغوُونکې)] تیتوونکې-کړکوُونکې-تیتوُونکې.

**چوغه** :- (چو+غه)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: چوغې]-چُغه-قبا-چوغه.

**چوغې سترگي** :- (چُو+غَ+ې+س+تَ+ر+گي)-[اِپ-اس ص-مؤ]- هغه سترگې چې ورکوټې وي او دید په کښې کم وي.

**چُوغې** :- (چُو+غې)-[اِپ-اس ص-مذ-وا-(مؤ: چوغې)]-(۱) کُبې-چې ملا ئې کږه وي. (۲) تنگ سترگې- چې سترگې ئې وړې وي.

**چوغېدل** :- (چُو+غې+د+ل)-[اِپ (ب-خ) مص لا]- پتېدل-کړکېدل-تیتېدل.

**چُوغېدنه** :- (چوغې+د+نه)-[اِپ (ب-خ)-حمص]-تیتېدنه-پتېدنه-کړکېدنه-چُوغېدۀ.

**چُوغېدُونکې** :- (چُو+غې+دُو+ن+کې)-[اِپ (ب-ج)-مف-مذ-وا-ج: چوغېدُونکي (مؤ: چوغېدُونکې)]-تیتېدُونکې-پتېدُونکې-کړکېدُونکې.

**چُوغېدۀ** :- (چُو+غې+دۀ)-[اِپ (ب-خ)-حمص] و______ چُوغېدنه.

**چُوف** :- (چُو+ف)-[اِپ-اس-مذ] چف-دم درود پوکونه.

دم د سرو شونډو د مهرکه پر چُوف شي
کوته زېږ بـه ئې سرۀ زرکاندي خالص (علي خان)

**چُوف کول** :- (اص)-چُف کول-دم کول.

**چُوف کېدل** :- (اص)-چُف کېدل-دم کېدل.

**چوک** :- (چو+ك)-[اَف:پ (قاموس)-ص]-د اوښ د خوب د پاره کېناستل یا پتېدل.

**چوک** :- (چو+ك)-[اِپ (بن)-اس صو] ټوك.

**چوک** :- (چَ+ؤ+ك)-[اَف:پ (قاموس) اس-مذ]-د طبعي کار- د طبیعت مطابق کار- د مرضۍ کار.

**چوک** :- (چَؤ-ك)-[ه-اس-مذ-وا-ج: چوکونه]-(۱) چارسُو-هغه ځای چې څلور سړکونه یا لارې په کښې یو ځای کېږي. (۲) چونك-حجره-هغه مکان چې د کور محلت خلق په کښې را غونډېږي.

**چُوک** :- (چُو+ك)-[اِپ-ص-مذ-(مؤ-وا: چُوکه-ج: چُوکې)]-(۱) یو سترگې- په یوه سترگه ړوند. (۲) پوټې-بکسکې-لږ څیز-ذره.

که انبار ابرو بائلي کاسیره مُومې
په دا زیان د پروا نۀ کېږي یو چوك (حمید)

(۳) کمي-زیان نقصان. (۴) سُولولې شوې پلوی.

**چُوک** :- (چُ+و+ك)-[اَف:پ (قاموس) اس-مذ-وا-ج: چوکونه]- هغه لښته چې اوبۀ یا بل د اوبو په شان څیز پر کچلې شي.

**چُوک چُوک** :- (چُو+ك+چُو+ك)-[اِپ-ص]-لږ لږ شان-کم کم- یو ځای څۀ څیز نۀ ورکول.

**چوکاټ** :- (چَؤ+کا+ټ)-[اِپ-اُر:چوکهټ-اس-مذ-وا-ج: چوکاټونه] د دروازې هغه څلور لرگي چې تنبې په کښې لگولې شي-د ور فریم.

**چوکر** :- (چو+کَ+ر)-[اِپ-اس-مذ-وا (مؤ: وا: چوکره-ج: چوکرې)] چاکر-نوکر- خدمتگار.

**چوکر** :- (چو+کَ+ر)-[اِپ-اس-مذ]-د ځناورو خوراك.

**چوکره** :- (چو+ك+ره)-[اِپ-ه: چهوکرا-اس-مذ-وا-ج: چوکره گان] (۱) هلك- ماشوم-ووړکې. (۲) ساتلې هلك.

**چوکره توب** :- (چوکره+تو+ب)-[اِپ-اس ص-مذ] هلك توب-د چاچور باز سړي هلك یا ویړکې پاتې کېدل.

**چوکرۍ** :- (چو+ك+رَۍ)-[اِپ (ظفر) اس-مؤ]-چُوکرې-د چلویرې ساگ.

**چُوکرې** :- (چُو+ك+رې)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ] و______ چوکرې.

**چوکړ** :- (چو+کَ+ړ)-[اَف:پ (قاموس) اس-مذ-وا-ج: چوکړان (مؤ-وا: چوکړه- ج: چوکړانې)]-(۱) رُوند-نابینا. (۲) نوکر-غلام-چاکر.

**چُوکړک چُوکړک** :- (چُو+ك+ړ+ك+چُو+ك+ړ+ك)-[اَف:پ (قاموس) اَس صو-

مذ]-د اوښ د رابللو اواز.

**چوکړک چوکړک کول** :- (اَف)-اِص-اواز-رابلل.

**چـــوکړه** :-(چُـــو+ك+ړه)-[پ (ب-خ) اِس - ص- مـــؤ -وا -ج: چُـــوکړې ]ارنګړے او اُوږده ږیره.

**چوکړه ږیره** :- (ب-خ)-اِص-رنګړے اوږده ږیره.

**چوک سترګے** :- (چُو+ك+س+ت+ر+ګے)-[اَف:پ (قاموس)-اس ص-مذ-وا-ج: چوك سترګي.(مؤ: چوك سترګې)]-یو سترګے-چغر-هغه څوك چې یوه سترګه ئې وړه یا ړنده وي-کوږ سترګے.

**چوکنار** :- (چُو+ك+نا+ر)-[اَف:پ (قاموس)-اس-مذ-وا-ج: چُوکنارونه] چُوکه-هغه لښته چې د ښاروو د شړلو د پاره ئې په سر کښې د اوسپنې تېرۀ مېخ لګېدلے وي.

**چوکه** :- (چو+که)-[اُر-اس-مؤ-وا-ج: چوکې]-د کرکټ په لوبه کښې په یو ګذار څلور نمبرې.

**چُوکـک** :- (چُـو+ك+ك)-[اَف:پ (قـاموس)-اس-مـذ-وا-ج: چوککونـه]- هغـه لرګے چې په زمکه کښې ښخ کړے شي او د دام پړے ور پورې تړي.

**چُوکل** :- (چُو+ك+ل)-[اَف:پ (قـاموس)-مص مت]-چف کـول- دمـول- دم پـر اچول.

**چُوکلے** :- (چُـو+ك+لے)-[اَف:پ (قـاموس)-مـف-مـذ-وا-ج: چُـوکلي (مـؤ: چُوکلې)]-چف کړے-دم کړے.

**چُوکنه** :- (چُو+ك+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-چُف کونه-دمونـه دم پـرې اچونه.

**چُوکو** :- (چُو+کو)-[اَف:پ (قاموس) اِس صو]-دغو اد شړلو غږ.

**چوکور**:-(چو+کو+ر)-[فا-اس-مذ-وا-ج: چوکورونه]-څلور ګوټیز-څلور ګوټے.

**چوکول** :- (چو+ك)و+ل+ل)-[اِپ-مص-مت]-اوښ کښېنول یا بېټول.

**چَوکول** :- (چو+ك+و+ل)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-څۀ کار د چا د طبیعت او مرضئ مطابق کول.

**چُوکول** :- (چُو+ك+و+ل)-[اِپ (ظفر)-مص مت]پنیري لګول-کـانلګول-بُـوټي لګول.

**چُوګونکے** :- (چُو+ګُو+ن+کے)-[اِپ-فـاع-مـذ-وا-ج: چوګـونکي-(مـو: چوکونکې)]-کووُنکے-چف کوُونکے.

**چوکونه** :- (چو+ك+و+نه)-[اِپ-حمص]-اُوښ کښېنونه یا بېټونه.

**چوکونه** :- (چو+ك+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]- څۀ کار د چا د مرضئ او خواهش مطابق سرته رسونه.

**چوکووُنکے** :- (چـو+ك+وُو+ن+کے)-[اِپ-فـاع-مـذ-وا-ج: چوکـوُونکي (مـؤ: چوکووُنکې)] اوښ کښېنووُنکے یا بېټووُنکے.

**چَوکؤونکے** :- (چَـو+ك+وُو+ن+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-فـاع-مـذ-وا-ج: چوکوُونکي-(مؤ: چوکوُونکې)] څۀ کار د چار مرضئ او خواهش مطابق سرته رسوُونکے.

**چَوکه** :- (چَو+که)-[اِپ-ه:چوکي-اِس-مؤ-وا-ج: چوکې]-دهندوانو د خوراك دُونکاچې.

**چُوکه** :- (چُو+که)-[اِپ-اس-مؤ-وا-ج: چُوکې]-(۱) هغه لښته چې په سر کښې ئې تېرۀ شان مېخ لګېدلے وي او غوایان پر شړلے شي. (۲) تېرول-ښکته کول-نغړل. (۳) لړه اندازه. (۴) سُولېدلے ببړۍ.

**چُوکه کول** :- (اِص)-څوك د څۀ کار د پاره پارول-څوك په څۀ خبره ورخېژول.

**چوکه کول** :- (خل)-اِص-پـه رنګړي فصل کښې پـه لـور یـا رمبي دانې اچول او نېغول.

**چُوکه وېش** :- (چُوکه+وې+ش)-[اِپ (یوسف)-اِص]-د زمکې په لښته وېش.

**چُوکـه** :- (چُو+کـه)-[اِپ (ګـن)-اِس-مـؤ-وا-ج:چـوکې] (۱) اَړکـې-لـړي-پټیـره. (۲) لپه-چُونګ.

**چُوکۀ** :- (چُو+کۀ)-[اِپ (سو)-اِس] د شولو یوې ګېډکۍ نالولو تـه وائـي چې یـو څو تیغي په کښې وي.

**چـوکۍ** :- (چَـو+ك+ۍ)-[اِپ-ه:چـوکي-اِس-مـؤ-وا]-(۱) څـوکۍ-د پېـره دارو ځاے. (۲) کرسي-د لرګي نه جوړه د ناستې پېړۍ. (۳) د پیر فقیر زیارت ته د نذر په ډول تلل.

**چوکۍ اخستل** :- (اَف) اِص-د نذر سره د پیر فقیر زیارت ته په مقرره وخت تلل.

**چُوکۍ** :- (چُو+ك+ۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا]-بلېره-د مرزانو یا بټېرانـو د نیولو جال.

**چُوکي چُوکي** :- (چُو+کي+چُو+کي)-[اِپ-ص]-لږ لږ- کم کم-ذره ذره.

**چُوکے** :- (چُو+کے)-[اِپ-اس تصغیر-ص]-لږ-کم-مذه.

**چوکیدار** :- (چَو+کي+دا+ر)-[اُر-اس-مذ-وا-ج: چوکیداران (مؤ-وا: چوکیداره-ج: چوکیدارې)]-څوکیدار- ژغروُنکے-ساتوُنکے.

**چوکیـداري** :- (چـوَ+کي+دا+ري)-[ار-ص]-څوکیـداري-د څوکیـدارۍ کـار- د ژغرلو ذمه واري.

**چوکېدل** :- (چو+کې+د+ل)-[اِپ-مص-لا]-د اوښ کښېناستل یا بېټېدل.

**چَوکېدل** :- (چَو+کې+د+ل)-[اَف:پ (قـاموس)-مـص لا]-څۀ کـار د چـار خـواهش او مرضئ مطابق سر ته رسېدل.

**چوکېدنګ** :- (چو+کې+د+ن+ګ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و____چوکېدنه.

**چوکېدنه** :- (چو+کې+د+نـه)-[اِپ-حمص]-چوکېـدنګ-د اوس کښېناستنه یـا بېټېدنه-چوکېدۀ.

**چوکېدنه** :- (چوَ+کې+د+نه)-[اَف:پ (قـاموس)-حمص] چوکېـدنګ- څۀ کار د چار مرضئ او خواهش مطابق سرته رسېدنه-چوکېدۀ.

**چوکېـدُونکے** :- (چـو+کې+دُو+ن+کے)-[اِپ-فـاع-مـذ-وا-ج: چوکېـدُونکي (مـؤ: چوکېدوُونکې)]-کښېناستونکے یا بېټېدونکے اُوښ.

**چوکېـدونکے** :- (چـو+کې+دُو+ن+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-مـذ] څـۀ کـار د چـار مرضئ او خواهش مطابق سرته رسېدونکے.

**چوکېدۀ** :- (چو+کې+دۀ)-[اِپ-حمص]-و________ چوکېدنه.

**چوکېدۀ** :- (چَو+کې+دۀ)-[اَف:پ (قاموش)-حمص] و______ چوکېدنه.

**چوګان** :- (چَو+ګا+ن)-[فا-اس-مذ-وا-ج:چوګانونه]-پولو-یوه لوبه چې پـه اَس سوارۀ غندسکے په لرګو وهي.

زړۀ مې سکه ګوئې دے د مستۍ په میدان کښې
تـل ئـې هـغـه تـرك وهي د زلفـو پـه چوګـان (خوشحال)

**چول** :- (چو+ل)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: چولونه]-(۱) بیابان-خوشې بېدیا- مېره.

نـۀ مـې یار نـۀ مـې غـم خوار شته په واچول کښې
لکـه بـې اوبـو څـوك بـند پـه ګـرم چول کا (خوشحال)

(۲) غینې-ذکر.

**د چول مزل کول** :- (اَف)-اِص-پـه خوشې بیابـان کښـې مـزل کـول-پـه وچې مېره کښې یُون کول.

**چول** :- (چ+د+ل)-[اِپ-مص مت] څیرې کول-درز په کښې جوړول.

**چول** :- (چُو+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چُولونه]-د دروازې چُوټړ.

**چولاوه** :- (چو+لا+وه)-[اَف:پ (قاموس) ص]-ځل وهلې-د تندې دلاسه مړ.

**چـولائي** :- (چـو+لا+ئي)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-چلـوائي-يـو قسـم خوندورساګ.

**چـول داري** :- (چـول+دا+رئ)-[اُر+اِس-مؤ-وا-ج: چولـداري] ورکـوټې خېمـه يـا تنبُو.

**چولک** :- (چو+لَ+کْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-(۱) غـينې-ذکـر-(۲) د واورې په شان نرې باران.

**چُولـول** :- (چُـو+لَ+و+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-مـص مـت]-خولـۀ خلاصـول-خـۀ وئيل-خولۀ بېرته کول.

**چُولونـه** :- (چُو+ل+و+نـه)-[اَف:پ (قـاموس)-حمـص]-خولـۀ خلاصـونه-خـۀ وېناکونه-خولۀ بېرته کونه.

**چُولوُونکې** :- (چُو+لَ+وُو+نْ+کَې)-[اَف:پ (قـاموس)-فـاع-مذ-وا-ج: چولـوونکي (مؤ:چُولـوُنکې)]- خولـۀ خلاصـوُونکې- څـۀ خبـره کُـوونکې-خولـۀ بېرتـه کوُونکې.

**چوله** :- (چو+له)-[اِپ-اِس-مؤ-وا-ج:چولې](۱) کور-مکان. (۲) درز-سُورې چاود. (۳) کُوځه. (۴) هغه لار چې دوارو اړخونو ته ئې شپول يا جارې بُوټي وي.

**چولې په چولې** :- (اِص) (۱) کُوځه په کُوځه. (۲) يو بل ته نژدې کوځې.

**د چا چولې ته تلل** :- (اِص)-(۱) د چا کُوځې ته تلل. (۲) د سوال د پاره د چا کور ته د جرګې په ډول تلل.

**چوله** :- (چو+له)-[اَف:پ (قاموس)-ص-مؤ]-خلاصه خولۀ-بيرته خولۀ.

**چوله کول** :- (اَف) اِص-د څۀ خبرې د پاره خولۀ خلاصول يا بېرته کول.

**چـولې** :- (چـو+ل+ئ)-[اَف:پ (قـاموس) اِس-مؤ] (۱) ګُـنجې يـا کـرتې قمـيص. (۲) زوړ دام چې ځينې حلقې ترې پرېوتې وي.

**چولې** :- (چ+وَ+لَې)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چـولي (مـؤ: چولې)]-چاودلې- درز په کښې شوې.

**چولې** :- (چو+لَې)-[اَف:پ (قـاموس) اِس-مذ-وا-ج: چولي]-د ماشـوم غـينې يـا ذکر چې لاسنت نه وي-چُوسې.

**چَولـې** :- (چَ+و+لَـې)-[اِپ (ب-خ)-ص-مـذ-وا-ج: چـولي (مـؤ: چـولې)]-(۱) مشروټ. (۲) نيازبين.

**چُولې** :- (چُو+لَې)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]-د ماشومانو د لوبو غونډ کاڼې.

**چولياني** :- (چو+لْ+يا+نْ+رَ+ئ)-[اِپ-اِس-مؤ]-جارګې-خندکې-د ډوډۍ پخولو ور کوټې کوټه شان.

**چوم** :- (چُو+مْ)-[اِپ-اِس-مذ-دا]-چم-جوم-هغه غتـه شان لُوټه چې د کبـل يـا وښو جرړې په کښې انښې وي.

**چومبې** :- (چو+مْ+بې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج:چومبي]- د بغرۍ لاستې.

**چُـومر** :- (چُـو+مَ+رْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چُومرونـه]-هغـه تـار يـا مزې چې د اُوبښ پېزې ته اچولې شي-سرمل.

**چُـومړوې** :- (چُـو+مَ+ړْ+وَې)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چُـومړوي]-د پائيکو د مېنځ لرګې.

**چُومک** :- (چُو+مَ+کْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-د اوښانو يو مرض چې خولۀ ئې په کښې کږه شي.

**چُومکې** :- (چُـو+مَ+کَې)-[اِپ (مر)اِس- مـذ-وا-ج: چومکي] -چرګوټې-د چرګې بچې- چميکې.

**چومل** :- (چُو+مَ+لْ)-[اِپ-مص مت] ښکلول-چيچي کـول- بوسـه اخسـتل-کـوکۍ اخستل-څپول.

خار تر تا رسوله تا مې يار ليدۀ په سترګو
راشه را نژدې شه چې دواړه سترګې چومم (خوشحال)

**چُوملې** :- (چُو+مَ+لَې)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چوُملي (مؤ: چوملې)]-ښکل کړې- چيچي کړې-کوکۍ ترې اخستې.

**چُومونکـې** :- (چُو+مـؤ+نْ+کَې)-[اِپ-فـاع-مـذ-وا-ج: چومُـونکي-(مـؤ: چُومونکې)]-چيچي کوُونکې-ښکلوُونکې-کوکۍ اخستُونکې.

**چُومي** :- (چُو+م+ئ)-[اِپ (ګن)-اِس-مؤ]- چيچي-چَپ-چُومه-بوسه.

**چُومې** :- (چُو+مَې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-د ماشومانو يوه بيماري چې د خولې نه ئې لاړې بهېږي.

**چُومي کېدل** :- (اَف)-اِص-د چُومي مرض لګېدل-د بيماري له کبله د ماشوم د خُولې نه لاړې بهېدل.

**چونبېل** :- (چُـو+نْ+بې+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چُونبېونـه] لـوې کچکول.

**چـونتره** :- (چـو+نْ+تْ+ره)-[اِپ-ه: چبوتره-اِس-مـؤ]-(۱) څـوتره-پـه کـرک ضـلع کښې د يوې علاقې نوم. (۲) دُومګاچې-اوچت ځاې.

**چونټې** :- (چو+نْ+ټې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس ص-مذ-(مؤ: چـونټۍ)]-چونډې- يو لاسې-ټونډې.

**چونټي** :- (چو+نْ+ټِي)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-چوټي-د سر اُوږدۀ ويښتۀ.

**چونچ** :- (چو+نْ+چ)-[ه-اِس-مذ-وا-ج: چوچخونه]-(۱) مښوکه. (۲) د قلم نب-د قلم څوکه.

**چُوندې** :- (چُو+نْ+دَې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مـذ]-ګوډ ګوډک-پـه يـوه پښـه په لار تلل.

**چُونـډۍ** :- (چُـو+نْ+ډَ+ئ)-[اِپ-اِس-مـؤ]-(۱) چونګـاده-تنګـرې-پـه دوؤ ګوتـو کښې څرمن يا غوښـه مښـل. (۲) لږ شان څيـز پـه غټـه ګوتـه او بلـه ګوتـه کښې رانيول يا اخستل.

**چُونړ** :- (چُو+نْ+ړْ)-[اِپ (ب-خ)-ص]-غوره-غوريز-ښۀ.

يو کلې او يا دوه چې ئې ستاينه کا دا ډېر دي
چُونړ ښکلې هغه دې چې ئې ستائي درست عالم
(خوشحال)

**چُـونړ** :- (چُـو+نْ+ړْ)-[اِپ (سو)-اِس-مـذ]-(۱) کـب-مهـې. (۲) د دروازې يـا کـټ چير. (۳) انتخاب-خوښونه-ووټ ورکونه.

**چُـونړ** :- (چُـو+نْ+ړْ)-[اَف:پ (قـاموس) اِس-مـذ-وا-ج: چُونړونـه]-(۱) د دروازې چير يا چتې. (۲) رو اواز- ډېر ټيټ غږ. (۳) د تـالاب يـا ويـالې سُـوړه. (۴) د چر چنې اواز. (۵) انګېتې.

**چُونړاسکې** :- (چُو+نْ+ړا+سْ+کَې)-[اِپ-اِس-مذ]- د يـو ورکـوټي بُـوټي اُودي ګـل چې خوند ئې خوږ وي.

**چُونړ چُونړه** :- (چُو+نْ+ړْ+چُو+نْ+ړه)-[اِپ-اِس-مؤ-وا-ج: چُونړ چُونړې]-چرچنه-يوه ورکوټې مرغۍ.

**چونکـې** :- (چُـو+نْ+ړْ+کَې)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس صـو-مـذ]-(۱) د مرغـانو او چرچنو اواز. (۲) د اوبـو د بهېـدلو اواز. (۳) د څـۀ څيـز پـه غـوړو يـا تېلـو کښې د تلېدلو اواز.

**چُونکي کول** :- (اَف) اِص-(۱) د چرچنو چنېدل. (۲) د اوبو بهېدل. (۳) څۀ څيز په غوړو يا تېلو کښې تلېدل.

**چوڼل** :- (چو+ڼ+ل)-[اِ-مص-مت]-خوښول-غوره کول-منتخب کول.

**چوڼـل** :- (چُـو+ڼ+ل)-[اَف:پ (قـاموس)-مـص مـت]-(۱) چڼـول چاڼـل-صـفا کول. (۲) جامو ته ګونځه ورکول.

**چوڼلے** :- (چُـو+ڼ+لَے)-[اِپ-مـص-مـذ-وا-ج: چـوڼلي-(مـؤ: چـوڼلې)]-غـوره کړے-خوښ کړے-منتخب کړے.

**چوڼلے** :- (چُـو+ڼ+لے)-[اَف:پ (قـاموس)-مـف-مـذ-وا-ج: چُـوڼلي (مـؤ: چوڼلې)]- (۱) چڼلے-چاڼ کړے-صـفا کـړے. (۲) جـامې تـه ګونځـه ورکړې-ګونځه کړې.

**چوڼنګ** :- (چُو+ڼ+ن+ګ)-[اَف:پ (قاموس) حمص] و______ چُوڼنه.

**چوڼونه** :- (چُو+ڼ+وَ+نه)-[اِپ-حمص]چوڼکونه-غوره کونه-خوښونه-منتخب کونه

**چوڼونـه** :- (چُو+ڼ+وَ+نـه)-[اَف:پ (قـاموس)-حمـص]-(۱) چُوڼونـګ-چرچڼې چڼونه. (۲) اوبهٔ بيونه.

**چوڼوونکے** :- (چُـو+ڼ+وَ+وُ+ن+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-فـا ع-مـذ-وا-ج: چُوڼوُونکي-(مؤ: چُوڼوُونکې)]-(۱) چڼووُنکے-چڼووُنکے-په چرچڼو چڼ چڼ کوونکے. (۲) لرې اوبهٔ بيووُنکے.

**چوڼووُنے** :- (چُو+ڼ+وَ+وُ+نَے)-[اِپ-اس-مذ-وا-ج: چوڼووُني) چاڼوُونے-هغه څيز چې اوبهٔ، تېل، چائې يا غوړي پر چاڼولے شي.

**چوڼهار** :- (چُو+ڼ+هَا+ر)-[اِپ-اس صو]-چڼهار-د مرغو يا چرچڼو په يو مخ چڼ چڼ-چڼېدل.

**چوڼهار کول** :- (اِص)-د چرچڼو يا مرغو په يو مخ چڼل چڼل کول-چڼېدل.

**چوڼې** :- (چُو+ڼ+ې)-[اِپ (ب-خ)-اِس-مؤ]-د اوسپنې هغه ورکوټے څيز چې يو مخ ئې تېرهٔ وي او بل پڅ-په دې لرګي او تيږې ماتولے شي-چاڼې.

**چوڼي** :- (چو+ڼ+ي)-[اِپ-ه: چاوني-اِس-مؤ-وا-ج: چوڼئ]-چاوڼې-د سپايانو يا عسکرو د اوسېدو ځاے-فوځي بارکونه.

**چوڼے** :- (چُو+ڼ+ے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چُوڼي]-بلبل-چوڼيا.

چوڼے چـې بـېل شـي نيمه خوا شي

تـل ئـې د بـڼ په لور ژړا شـي (شيخ عيسي)

**چوڼے** :-(چُو+ڼ+ے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ)-د کاريز سُورے يا سُوړه.

**چوڼيا** :-(چُو+ڼ+يا)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-(۱) بلبل-چوڼے. (۲) بنفشه.

**چوڼياکوکې** :- (چُوڼيا+کو+ک+ې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-د چڼبلوګل.

**چوڼيـاکې** :- (چُو+ڼ+يـا+ک+ې)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـؤ]-د بنفشـې بُوټے او ګُل.

**چوڼيانې** :- (چُوڼيا+ن+ې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-په کور کښې دننه د زناناؤ غسل خانه يا تشناب.

**چوڼيـانې** :-(چُوڼيـا+ن+ې)-[اِپ (ظفـر)-اِس-مـؤ] بـاورچي خانـه-د پخلـي کوټګۍ-خندکے.

**چوڼېدل** :- (چُو+ڼ+ې+د+ل)-[اِپ-مص لا]-(۱) چڼېدل-چڼ چڼ کول-چرچڼې يا بلبلان چغول. (۲) اوبهٔ بهېدل. (۳) چاڼ کېدل-صفا کېدل.

**چوڼېدلے** :- (چُو+ڼ+ې+د+لَے)-[اِپ-مف-مذ-وا-ج: چوڼېدلي-(مؤ:چوڼېدلې)]-(۱) چڼېدلے-چغېدلے. (۲) اوبهٔ بېېدلے. (۳) چاڼ شوے-صفا شوے.

**چوڼېدنګ** :- (چُو+ڼ+ې+د+ن+ګ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و____ چُوڼېدنه.

**چوڼېدنه** :- (چُو+ڼ+ې+د+نه)-[اِپ-حمص]-(۱) چوڼېدنګ-چوڼېدهٔ-چڼېدنه-چغېدنه. (۲) اوبهٔ جاري کېدنه. (۳) چاڼکېدنه-صفاکېدنه.

**چوُڼېدهٔ** :- (چُو+ڼ+ې+دهٔ)-[اِپ-حمص] و______ چُوڼېدنه.

**چُونګے** :- (چُـو+ن+ګے)-[اَف:پ (قـاموس)-ص]-(۱) سـخا-نـاولے-بـد شـکله (۲) بدعمله. (۳) سرينده. (۴) بې شرمه-بې حيا.

**چونـګ** :- (چ+و+َن+ګ)-[اَف:پ (قـاموس)-حمـص]-چونـه-چاؤدنـه-چـاؤد پـه کښې کېدنه.

**چُونګ** :- (چُو+ن+ګ)-[اِپ-اس-مذ]-(۱) يو موټے قدرې-لږ څيز-متل: چې اويهٔ د سر نه واورې نو څهٔ چُونګ او څهٔ لپه. (۲) د چرګوټې اواز.

**چُونګـاره** :- (چُو+ن+ګـا+ره)-[اِپ (ب-خ)-اِس-مـؤ-وا-ج: چونګـارې] نُوکـاره-ټوُنګاره-د نُوك خراش.

**چونګارې لګول** :- (اِص) نوکارې لګول-د ګوتوپه نوکونو زخمي کول.

**چونګـــابښ** :- (چ+و+ن+ګــا+ش+يـــا خ)-[اَف:پ (قـــاموس)-اِس-مـــذ-وا-ج: چونګابنا]-کوني کبر-يوه حشره.

**چُونګاوڼ** :- (چُو+ن+ګا+و+ن+ړ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-چُونګن-هـبخ بې هبخه شور کوُونکے.

**چونګښه** :- (چُو+ن+ک+شه يا خه)-[اِپ-اِس-مؤ-وا-ج: چُونګښے] چيندخه.

**چونګښے تلل** :- (اِص) (۱) چيندخے تلل يـا تـول کـول. (۲) بې فائدې کار کـول. (۳) نهٔ کېدوُنکي کار ته لاس اچول.

**چُـونګن** :- (چُـو+ن+ک+ن)-[اِپ-ص-مـذ-(مـؤ-وا:چونګنـه-ج: چونګنې] ژړانـد-هبخ بې هبخه شور کوُونکے.

**چُونګن** :- (چُو+ن+ک+ن)-[اِپ (ب-خ)-ص-مـذ (مـؤ-وا: چونګنـه-ج: چونګنے)]-په سودا کښې ډېر لاس وهونکے يا تنګوُونکے.

**چونګول** :- (چُو+ن+ک+و+ل)-[اِپ-مص مت]-ژړول.

**چُونګـول** :- (چُـو+ن+ګ+و+ل)-[اِپ (ب-خ) مـص مـت]-پـه سـودا کښـې ډېـر لاس وهل يا تنګول.

**چُونګولـــے** :- (چُــو+ن+ګ+و+لے)-[اِپ-مـــف-مـــذ-وا-ج: چُونګـــولي-(مـــؤ: چُونګولې)]-ژړولے.

**چُونګووُنکے** :- (چُو+ن+ګ+وُو+ن+کَے)-[اِپ-فـا ع-مذ-وا-ج: چُونګوُونکي (مؤ: چونګوُونکې)]-ژړووُنکے.

**چُونګووُنکـــے** :- (چُـــو+ن+ګ+وُو+ن+کے)-[اِپ (ب-خ)-فـــا ع-مـــذ-وا-ج: چونګووُنکي (مؤ: چونګووُنکې)]-په سودا کښـې ډېر لاس وُهـونکے يا تنګووُنکے.

**چوُنګے** :- (چُـو+ن+ګے)-[اِپ-اس-مـذ-وا-ج: چـونګي]-(۱) يـوه اړخـهٔ لپـه. (۲) اندازه. (۳) د مارغهٔ اواز. (۴) د تيز اواز. (۵) ګټه-برے.

**چـونګي کـول** :- (اِص) لـږه شـان ګټـه کـول-پـه لوبـه کښـې معمـولي شـان بـرے موندل.

**چونګي کېدل** :-(اِص) لږه شان ګټه کېدل-په لوبه کښې لږشان برے تر لاسه کېدل.

**چُـونګي چُـونګي** :- (چُو+ن+ګي+چُو+ن+ګي)-[اِپ-ص]لږ لږ-کم کم- پـوټے پوټے-لپه لپه-

بقالان وُو سپاهيان په هندوستان شو

دروېزه کاندي اشراف چُونګي چُونګي (قاسم علي اپريدے)

**چُونګي چُونګي کول** :- (اِص)-لږ لږ کول-پوټے پوټے کول.

**په چونګي چُونګي ورکول** :- (اِص)-لږ لږ ورکول-پوټے پوټے ورکول.

**چونګېدل** :- (چُو+ن+ګې+د+ل)-[اِپ-مص لا]-ژړېدل.

**چُونګېـدل** :-(چُـو+ن+ګې+د+ل)-[اِپ (ب-خ) مـص لا]پـه سـودا کښـې چـنجن

توب کول.

**چونګښـدلے** :- (چُـو+نْ+ګښ+د+لَے)-[اپ-مـف-مـذ-وا-ج: چونګښـدلي-(مـؤ: چونګښدلې)]-ژړېدلے.

**چونګښدلے** :- (چُـو+نْ+ګښ+د+لَے)-[اپ (ب،خ) مـف-مـذ-وا-ج: چُونګښـدلي-مـؤ: چونګښدلې)]په سودا کښې چنجن توب کړے-په سودا کښې ټينګ شوے.

**چونګښـدُونکے** :- (چُـو+نْ+ګښ+دُو+نْ+کے)-[اپ-فـاع-مـذ-وا-ج: چونګښـدُونکي (مؤ: چُونګښدُونکې)]- ژړېدُونکے.

**چُونګښــــدُونکے** :- (چُــو+نْ+ګښ+دُو+نْ+کے)-[اپ (ب،خ)-فــاع-مــذ-وا-ج: چونګښـدُونکي-(مـؤ: چونګښـدُونکې)] پـه سـودا کښـې چيـنجن تـوب کوُونکے.

**چونه** :- (چ+و+نه)-[اپ-حمص]-چاؤدونه-چاؤد په کښې کېدنه-درز په کښې جوړېدنه.

**چُونه** :- (چُو+نه)-[اپ-ه: چُونا-اِس-مؤ]-د کاڼي نه جوړ سپين پوست څيز چې ديوالونه پر سپينولے شي.

**چونه** :- (چو+نه)-اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ]-زړه ښځه چې په جُوټه ورکوټې وي.

**چونه اخستل** :- (اِص)-د چونې رنګ څلېدل-څۀ څيز په چُونه سپينېدل.

**چونـه جـوړول** :- (اِص) پـه بټـۍ کښـې د چـونې کـاڼو نـه د اور پـه ذريعـه چُونـه تيارول.

**چونـه کـول** :- (اِص) چُونـه لګـول-ديـوال يـا بـل څيـز تـه چُونـه ورکـول-پـه چُونـه سپينول.

**چونه لګول** :- (اِص) و________ چُونه کول.

**په چُونه سپينول** :- (اِص) و________ چُونه کول.

**چونۍ** :- (چو+ن+ئي)-[اَف:پ (قـاموس)-مـذ (مؤ: چونۍ)]- ورکـوټے زړۀ تـه تېـر څيز.

**چوُو** :- (چ+وُو)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]-د واورې باد.

**چوُونکے** :- (چ+وو+نْ+کے)-[اپ-فـاع-مـذ-وا-ج: چُـوونکي (مـؤ: چُـوونکې)] چاؤدُونکے- چاؤد په کښې کېدونکے-چاؤدلے کېدُونکے.

**چـوُونګړت** :- (چ+وُو+نْ+ګ+ړ+تْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-چيـندرو-د ماشومانو يوه لوبه.

**چوه** :- (چ+وه)-[اپ-اس-مؤ-وا-ج: چوې]-(۱) د تېلو يـا ښـاخونو لويـه ټوکرۍ. (۲) يو خوشبوداره بُوټے.

د خوشحال په پالنګ بيا راغله سر شاره
زعـفـرانـو پـه چـوه لــړلــې خــتې (خوشحال)

**چوهـارے** :- (چُو+هـا+رَے)-[اپ-اِس-مـذ-وا-ج: چوهـارې-چوهاړيـان (مـؤ: چوهارۍ)]-چوهړے-مردار خور- بنګي- ناپاک- سخا-ګنده.

**چوهره** :- (چُو+هْ+ره)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-کوړيته-ګونځه.

**چُوهړے** :- (چُو+هَ+ړے)-[اپ-اِس-مذ-وا-ج: چوهړي (مؤ: چوهړۍ)] و________ چوهارے

چوهړي پلاؤ شولې خوړه حلوه خوري
پـه سيد بـاندې حلالې دي مـرداري (خوشحال)

**چُوهڼ** :- (چُو+هْ+نْ+ړ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-يو قسم مشهور خاوره.

**چوی** :- (چَ+و+ئ)-[اپ-اِس-مؤ]-د وښو ټوکرۍ.

**چې** :- (چ+ې)-[اپ-(ح)]-د بيان حرف-څۀ-ځکه-دمې دے پاره

ما خو هسې شان معلوم کړۀ
هــر چــې دا دي حــال ئــې دا (علي خان)

**چې** :- (چَ+ې)-[اپ-مؤ]-سوېره-د پناه ځاے.

**چپايـل** :- (چ+هـا+ي+لْ)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چپايلونـه]-پـړونے-چايل.

**چېر** :- (چ+ې+رْ)-اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]-يو اوچت بُوټے چې ګلان ئې زېړوي.

**چېره** :- (چ+ې+ره)-[ه-اِس-مؤ-وا-ج: چېرے]-څېره-مخ-شکل.

ايماني چېره مے لاړه حبشي شوه
د فراق په اورئې سوے لوغړن يم (خوشحال)

**چېلي** :- (چَ+ې+لي)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مؤ]-وړے.

**چَئ** :- (چَے)-[اپ (ب،خ)-اِس-مذ]-چائې.

**چۍ** :- (چ+ئ)-[اپ-اِس-مؤ]-چې-چائې.

**چِي** :- (چي)-[اپ-اِس-مؤ+-چئ-چائې.

**چې ايشے** :- (چې+اي+شَے)-[اَف:پ-قاموس)-اِس-مذ]-چاجوس-چائې جوش.

**چيبر** :- (چې+بَ+ر)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مذ (مؤ-وا: چيبره-ج: چيبرې)]-هنرمند-چې څۀ کسب ئې زده وي.

**چيـت** :- (چې+تْ)-[اپ-ص-مـذ-(مؤ-وا: چيتـه-ج: چيتـې)] (۱) چپليـت-چپـړ (۲) تيت-تيتې. (۳) مبتلے شوے.

**چيـت پيـت** :- (چيـت+پي+تْ)-[اپ-ص-مـذ (مؤ-وا: چيتـه پيتـه-ج: چيتـې پيتې)]-ببخي-چپليت.

**چيتـر** :- (چې+ت+رْ)-[اپ-ه: چېت-اِس-مذ]-هنـدي مياشـت-د هنـدي کـال دولسمه مياشت.

**چيتـرو** :- (چې+تْ+رو)-[اَف: پ (قـاموس)-اِس-مؤ]د ماشومانو د لوبـو غنـډ کانړے.

**چيتــره** :- (چــې+تْ+ره)-[اَف:پ (قــاموس)-اِس-مــؤ]-ګـرد غُنـډ کـانړے چـې ماشومان لوبې پرې کوي.

**چيتوالے** :- (چې+تْ+وا+لَے)-[اپ-ص-مذ]-چپليت والے.

**چيتــول** :- (چـــې+تَ+و+لْ)-[اپ-مــص-مــت]-(۱) چپليــت کــول-پلنــول. (۲) ټکول (۳) پرزول.

**چيتونګ** :- (چې+تَ+و+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و__ چيتونه.

**چيتونـه** :- (چې+تَ+و+نه)-[اپ-حمـص]-(۱) چيتونـګ-چپلتونـه. (۲) ټکونـه. (۳) پرزونه-پلنونه.

**چيتووُنکے** :- (چې+تَ+وُو+نْ+کَے)-[اپ-اس فاع-مذ-وا-ج: چيتـوُونکي-(مـؤ: چيتـــــوُونکې)]-(۱) چپليتــــوُونکے-پلنــــوُونکے. (۲) ټکــــوُونکے. (۳) پرزوونکے.

**چيټه** :- (چې+ټَه)-[اپ (ب،خ) مؤ] چېرته-چېرې-کوم ځاے-کُوم پله.

**چيتۍ** :- (چې+ت+ئ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-د ماشومانو د لوبو کانړے.

**چيتېدل** :- (چې+تې+د+لْ)-[اپ-مص لا]-(۱) چپليتېدل-پلنېدل. (۲) ټکېدل (۳) پرزولے کېدل-پرزېدل.

**چيتېدنګ** :- (چې+تې+د+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]و__ چيتېدنه.

**چيتېدنه** :- (چې+تے+د+نه)-[اپ-حمص]-(۱) چيتېدنګ-چپليتېدنه-پلنېدنه-چتېدۀ. (۲) ټکېدنه. (۳) پرزېدنه-پرزولے کېدنه.

**چيتېدۀ** :- (چې+تې+دۀ)-[اپ-حمص]-و________ چيتېدنه.

**چيـټ** :- (چې+ټْ)-[اپ-ه: چهينټ-اِس-مذ-]-يو قسم ګلداره کپړه چې اکثر

زنانه ترې جامې جوړوي.

**چېته** :- (چې+ته)-[اپ (گن)-اِس-مؤ]-تاكيد-ټينګه-په زور خبره-ور يادونه-په كلكه خبره كونه.

**چېته كېدل** :- (گن) اِص-په ټينګه وېنا كېدل-په كلكه وئيلے كېدل- تاكيد كېدل.

**چېته كول** :- (گن)اِص-تاكيد كول-څۀ خبرې په حقله په زور او ټينګه وېنا كول- كلكه ورته وئيل.

**چېته** :- (چې+ته)-[اپ (ب-خ-ص)]-تاوان-ډنډ.

**چېته كول** :- (ب-خ)ص-تاوان كول-ډنډ كول.

**چېته كېدل** :- (ب-خ-اِص-تاوان كېدل-ډنډ كېدل.

**چيته** :- (چي+ته)-[اپ (سو)-اِس-مذ]-د چرسو ګولۍ.

**چيته څښل** :- (سو)-اِص-د چرسو لُوګے اخستل-چرس څښل.

**چيټي** :- (چي+ټي)-[اپ-ه: چټھي-اِس-مؤ-وا-ج: چټيانې-چيټۍ] چُوټي- رُخصت-اجازت.

**چيټي كښې تلل** :- (کُرم)-اِص: په چوټي تلل-په رخصت كېدل.

**چيټي كول** :- (اِص)-(۱) كار بس كول. (۲) سكول بندېدل.

**چيټي كېدل** :- (اِص)-كار بس كېدل- اجازت وركېدل.

**چيټي وركول** :- (اِص)-(۱) اجازت وركول-پرېښول. (۲) د كار نه شړل يا ويستل.

**چيټۍ** :- (چي+ټي)-[اپ-ه: چټھي-اِس-مؤ-وا-ج: چټيانې-چيټۍ]-خط- د كاغذ ليكلې ټكړه-ليك.

**چيټۍ استول** :- -اِص-چيټۍ لېږل-چاته د ليك په ذريعه خبر وركول.

**چيټۍ بندول** :- (اِص)-(۱) خط نه ليكل- په څۀ وجه ليك نۀ استعمال. (۲) ليكلې چيټۍ په لفافه كښې اچول. (۳) په خط كښې نور ليك نۀ كول.

**چيټي لېږل** :- (اِص)-و____ چيټي رسول.

**چيټي ليكل** :- (اِص) خط ليكل-ليك كول.

**چيچړ** :- (چي+چَ+ړ)-[اَف:پ (قاموس)-ص-مذ]-(۱) ګونځې-ګرترې. (۲) د يوې خبرې نه په هېڅ ډول نۀ منع كېدُونكے يا اورېدُونكے.

**چيچړ كول** :- (اِص) ګونځې كول.

**چيچړ كېدل** :- (اِص) ګونځې كېدل.

**چيچړو** :- (چي+چُ+ړو)-[اپ (وز)اِس-مؤ-وا]-(۱) چينډرو. (۲) د چينډرو يوه خاصه خانه.

**چيچړوبې** :- (چي+چُ+ړو+بې)-[اپ (وز)-اِس-مؤ]-چړچوبې-غسل خانه.

**چيچړه** :- (چي+چُ+ړه)-[اپ-ص-مؤ-وا-ج: چيچړې]-(۱) نرم او اوبړې څيز. (۲) خواره او بې كاره غوښه-برنځ.

**چيچړې** :- (چي+چُ+ړې)-[اپ-اِس-مؤ]-سپرې-د كټمل يا كوټك په شان يو حشره چې د مال په څرمنې پورې ټينګه نښتې وي.

**چيچكه** :- (چي+چَ+كه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: چيچكې] چُوچكه- خُوانه چرګه.

**چيچګے** :- (چي+چ+ګے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج چيچګې] د جينكو د لوبو نانځكه يا ګوډۍ.

**چيچل** :- (چِي+چ+لْ)-[اپ-مص مت] - (۱) په غاښو پرې كول-غاښ پرې لګول- چك لګول.

عقل و هوش ئې و سرې وته پيدا كړل
دا چيچل دا ړل د پړانګ دي يا د پړې (خوشحال)

(۲) د مار لړم يا ډنبرې چك لګول. (۳) سخت څيز په غاښونو ماتول او خوړل.

**غاښ چيچل** :- (اِص) غصه كول-خپل غاښونه سره ټينګول.

غاښ چيچم له ضرورته ګوندې خېژي
ما په غاښو دے نيولے زما روح (علي خان)

**چيچلے** :- (چي+چَ+لَے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: چيچلي (مؤ: چيچلې)]-(۱) په غاښو پرې كړے. (۲) ټك وركړے. (۳) شُوم-كنجوس-بخيل.

**چيچنګ** :- (چي+چَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و____ چيچنه.

**چيچنه** :- (چي+چ+نه)-[اپ-حمص] (۱) چيچنګ-په غاښو پرې كونه. (۲) ټك وركونه. (۳) دانې په غاښ وماتونه او خوړنه.

**چيچوك** :- (چي+چُو+كْ)-[اپ (ظفر) اِس-مذ] يوه لوبه.

**چيچُونكے** :- (چي+چُو+ن+كے)-[اپ-فاع-مذ-وا-ج: چيچُونكي-(مؤ: چيچُونكې)] (۱) په غاښونو پرې كوُونكے. (۲) ټك وركوُونكے. (۳) دانې په غاښونو ماتوُونكے او خوړُونكے.

**چيچې** :- (چي+چې)-[اپ (ب، خ)-اِس-مؤ-وا-ج: چېچې]-د ماشومانو په ژبه كښې غوښې ته وائي.

**چېچې** :- (چې+چې)-[اپ (ب،خ)-اِس- مؤ]-ټينګه-تاكيد-چېته.

**چېچې كول** :- (اِص)-په ټينګه وېنا كول-په چېچې وئيل-چېته كول.

**چېچې كېدل** :- (اِص)-په ټينګه وېنا كېدل-چېته كېدل.

**په چېچې وئيل** :- (اِص) و____ چېچې كول.

**چيچي** :- (چيْ+چَي)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ-وا-ج: چيچيانې]-چوچې-د مرغۍ بچے.

**چې چې** :- (چې+چې)-[اپ (پ،خ)-اِس صوا]-د بزې دِرابللو اواز.

**چيخا** :- (چيْ+خا)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] د ماشومانو په ژبه كښې سپي ته وائي.

**چيخړن** :- (چي+خْ+ړَ+نْ)-[اپ (وز)-اِس-مذ-(مؤ-وا: چيخړنه-ج: چيخړنې)]- ګنده-لړلے-ناپاك.

**چيخل** :- (چي+خ+لْ)-[اپ-مص-مت] چخل-ورمنډل-تنه ايستل.

**چيخن** :- (چي+خ+نْ)-[اپ-ص-مذ-]-چخن.

**چيخنول** :- (چي+خ+نَ+و+لْ)-[اپ (گن) مص-مت]-راكښل.

**چيخنونه** :- (چي+خ+نَه+و+نه)-[اپ (گن) حمص] راكښنه.

**چيخنوُونكے** :- (چي+خ+نَ+وُو+ن+كَے)-[اپ (گن)-اِس-فاع-مذ-وا-ج: چيخنُوونكي (مؤ: چيخنوُونكې)]-راكښوُنكے.

**چيخنېدل** :- (چي+خ+نې+د+لْ)-[اپ (گن) مص لا]-راكښلے كېدل.

**چيخنېدنه** :- (چي+خ+نې+د+نه)-[اپ (گن)-حمص]-راكښلے كېدنه چيخنېدۀ.

**چيخنېدُونكے** :- (چي+خ+نې+دُو+ن+كے)-[اپ (گن)-مف-مذ-وا-ج: چيخنېدُونكي-مؤ: چيخنېدُونكې)]-راكښلے كېدُونكے.

**چيخنېدۀ** :- (چي+خ+نې+دۀ)-[اپ (گن) حمص]- و____ چيخنېدنه.

**چيخوړي** :- (چي+خُو+ړي)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-زوړ او بېكاره څيز.

**چيخي** :- (چِي+خي)-[اپ-اِس-مؤ]-(۱) د سترګو مېل. (۲) هغه چيخے چې د ماشومانو په كونه كښې وي-كيخي.

**چې دمۍ** :- (چے+د+مۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-چاپنك.

**چير** :- (چي+ر)-[اِپ (وز)-اِس-مذ-وا-ج: چيرينه]-څيرنګے-تېروسکے-تېرۀ مخے کاڼے.

**چېرته** :- (چي+ر+ته)-[اِپ-مؤ]-چېرته-چېرې-چېرې-کُوم ځاے-کُوم پله-چېته.

**چيرړه** :- (چي+ر+ړه)-[اِپ-اِس-مؤ-وا-ج: چيرړې]-لتـه-زړه لتـه د زړې کپړې ټوټه-چيره-رنجه-څيره.

**چيرک** :- (چي+ر+ک)-[اِپ (ګن)-اِس-مذ-وا-ج: چيرکُونه]- نرۍ لار.

**چيـرمېن** :- (چ+ي+ر+م+ې+ن)-[اَنګ-اِس-مـذ-وا-ج: چيرمېنـان-(مـؤ-وا: چيرمېنه-ج: چيرمېنې)]-صدر-مشر.

**چېره** :- (چي+ره)-[اِپ-اِس-مؤ-وا-ج:چيرې]-و________ چيرړه.

**چېرې** :- (چي+رې)-[اِپ]-چېرته.

که د چېرې د اشنا په لور ګذر شي

د صبا باده زمـا سلام پرې وایه (خوشحال)

**چېرې خو** :- (چې+ رې + خو)- [اَف:پ (قاموس) -کُوم پلو-کُوم ځاے-کُوم طرف ته.

**چيـړ** :- (چي+ ړ-[اِپ-اِس-مـذ ](۱) کنـډ - ګونـد - سربېنـاك څيـز (۲) يـوه اُوچته ونه.

**چېړ** :- (چي+ړ)-[اِپ-اِس-مذ]-بلوسه-برخلافي-چېړچاړ.

**چېړ کول** :- (اِص)-بلوسه کول-تکليف ورکول-برخلافي کول-تنګول.

**چېړچاړ** :- (چېړ+چا+ړ)-[اِپ-اِس-مذ]- و________ چېړ.

**چېړچاړي** :- (چې+ړ+چا+ړي)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]عيش عشرت-مزې چرچې.

**چېړل** :- (چې+ړ+ل)-[اِپ-مص مت]-تنګول-چېړ کول.

**چېـړ لے** :- (چې+ړ+لے)-[اِپ-مف-مـذ-وا-ج: چېړلـي (مـؤ: چېړلې)]- تکليـف ورکړے-تنګ کړے.

**چېړنه** :- (چې+ړ+نه)-[اِپ-حمص](۱) تکليف ورکونه-تنګونه.(۲) څېړنه-تحقيق کونه

**چېړُونکے** :- (چې+ړُو+ن+کے)-[اِپ-فاع-مذ-وا-ج: چېړُونکي-(مؤ: چېړُونکې)]- تکليف ورکوُونکے-تنګوُونکے.

**چيز** :- (چي+ز)-[فا-اِس-مذ-وا-ج: چيزونه] څيز-جنس-شے.

**چيز** :-(چي+ز)-[اَنګ-اِس-مذ] دکرتو په شان د شودو نه جوړ د خوراك يو څيز-پنير.

**چيستان** :- (چي+س+تا+ن)-[فا-اِس-مذ-وا-ج: چيستانُونه] اَړ- معمه-

دا چيستان د يار له شونډو راته حل شو

اروبـده شو يـو ځـاے نقل او شراب (خوشحال)

**چيسـتکے** :- (چي+س+ت+کے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: چيسـتکي (مؤ: چيستکې)] نرم-اوبړن-اوبلن.

**چېشـن** :- (چـې+ش+ن)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ (مـؤ-وا-:چېشـنه-ج: چېشنې)]-(۱) وېښتۀ لرُونکے. (۲) يو کلن اُوښ چې ورۍ پرې نۀ وي راغلے.

**چېشـن** :- (چې+ش+ن)-[اِپ (ب،خ)-اِس-مـذ-(مؤ-وا چېشـنه-ج:چېشـنې)]-د بزې بچے چې يو کلن وي. سبرلے-چېشنکے.

**چېشنکے** :- (چې+ش+ن+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-ج: چېشنکي (مؤ: چېشنکې)]-د بزې يو کلن بچے-سبرلے.

**چېغل** :- (چې+غ+ل)-[اِپ-مص مت] چغېدل-چغار کول.

پـه مـثـال لکه بلبل

هسې شان به ئې چېغل (طالب رشيد)

**چيغه** :- (چي+غـه)-[اِپ-اِس-مؤ-وا-ج: چيغې]-(۱) کريکـه-کريغـه-فريـاد- پـه زور اواز. (۲) چغه-په هپه وتُونکي خلق.

**چيغه کول** :- (اِص)-(۱) کرينه کول- ناره کول. (۲) چيغـه ګـډول-پـه چيغـه تلل-چيغه ويستل-په چاپسې په هپه تلل.

**چيغه ګډول** :- (اِص) و________ چيغه کول.

**چيغه وتل** :- (اِص)-(۱) کريغه وتل-ناره د خولې وتـل.(۲) په چغه بهر تلل-هپـه وتل.

**چيغه ويستل** :- (اِص) و________ چيغه کول.

**په چيغه تلل** :- (اِص) و________ چيغه کول. (۲)

**چيغې وهل** :- (اِص)-کريغې وهل-نارې سورې ګډول.

**چيف** :- (چي+ف)-[اَنګ-اِس-مذ]-مشر-سردار-افسر.

**چيف جسټس** :- (چيف+ج+س+ټ+س)-[اَنګ-اِس-مذ] اعلي حج- لوے حج.

**چيکړ** :- (چي+ک+ړ)-[اِپ-اِس-مذ]-لمده-ختېه.

**چيل** :- (چي+ل)-[اِپ-اِس-مذ]-داګويا ها ځومبك.

**چيـل** :- (چي+ل)-[اِپ (صوابي)-اِس-مـذ]-(۱) د اوړ-پـړونے-زنانـه څـادر. (۲) د غوزانو جومپك.

**چيلان** :- (چي+لا+ن)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-يـو حلال مارغـۀ چې وَزراو شا ئې تور وي.

**چېلنج** :- (چې+ل+ن+ج)-[انګ-اِس-مذ-وا-ج: چېلنجُونه]د مقابلې غږ-پټون تپونه.

**چيلو** :- (چي+لو)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-يو قسم ترکاري-يوه سبزي.

**چيله** :- (چي+لَه)-(پ-فا: چله-اِس-مؤ-وا-ج: چيلې]- ګُوټ ناسته-يو عمل چې خلق ځان ته په عبادت او ذکر فکر مشغول وي- او د نورو خلقو سره په هغه ورځو کښې هېڅ قسم ته ګډون نۀ کوي.

**چيلے** :- (چي+لے)-[اِپ-اِس-مذ-(مؤ: چيلۍ)]-کچيکے-د بزې سبرلے.

**چيمبا** :- (چي+م+با)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـؤ]-تـوراني-بربيتـه-د سحر بلبله.

**چيمبر** :- (چي+م+بَ+ر)-[اَنګ-اِس-مذ]-کمره-کوټه-عمارت.

**چيمبـر آف کـامرس** :-(چيمبر+آ+ف+کا+مَ+ر+س)[اَنګ-اِس-مـذ]-د تجارت مجلس.

**چيمخن** :- (چي+م+خ+ن)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-(۱) يـو چيـنجے (۲) تک-بې اتباره. (۳) چخن-چخړن.

**چيمکے** :- (چي+م+کے)-[اِپ-اِس-مـذ-وا-ج: چيميکې]-د چرګې بچے چې هيله د اګۍ نه راوتے وي.

**چين** :- (چي+ن)-[اِس معرفه]د يو ملك نوم چې ابادي ئې په ټوله دنيا کښې زياته ده.

دا د چين نقش خانه ده

يا د تـرکو استانه ده (علي خان)

**چين** :- (چي+ن)-[اَنګ-اِس-مذ-وا-ج: چينُونه]-زنځير.

**چيناستل** :- (چي+نا+س+ت+ل)-[اِپ (مر)-مص]-کښېناستل.

**چيناسته** :- (چي+نا+س+ت+نه)-[اِپ (مر)-حمص]-کښېناستنه، چپناستۀ.

**چپناستُونکے** :- (چي+نا+س+تُو+ن+کے)-[اِپ (مر)-فـاع-مذ-وا-ج: چپناستُونکي (مؤ: چپناستُونکې)]-کښېناستُونکے.

**چېناستۀ** :- (چې+نا+سْ+تۀ)-[اپ (مر)-حمص] و ــــــــ چېناستنه.

**چينجخ** :- (چيْ+نْ+ج+خْ)-[اپ (صوابي)-اِس-مذ-وا-ج: چينجخان-(مؤ-وا: چينجخه-ج: چينجخې)] -چيندخ-چينډخ-چونګښ.

**چينخي** :- (چِيْ+نْ+خي)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-چينخيان]يو قسم چينجے.

**چينچاړے** :- (چيْ+نْ+چَا+ړے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]چرچرك-يو قسم حشره.

**چيندخ** :- (چيْ+نْ+دَ+خْ)-[اپ-اِس-مذ-وا-ج: چيندخان]-چُونګښ- چونډخه-يو زنده سرے چې په اوبو کښې خوشحاله وي. متل: چيندخ په لُوټه وختو کشمير ئې وليدو.

**چيندخه** :- (چيْ+نْ+د+خه)-[اپ-اِس-مؤ-وا-ج: چيندخې]-چُونګښه-چينډخه.

**چِيندرو** :- (چيْ+نْ+د+رو)-[اپ-اِس-مؤ]-چيندره-نانك-د ماشومانو يوه لوبه.

**چيندره** :- (چيْ+نْ+دْ+رَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] وــــ چيندرو.

**چينده** :- (چيْ+نْ+دَه)[اپ (بنګښ)-اِس-مؤ-وا-ج: چيندې]سمڅه-سمسته-چېوده.

**چيندي** :- (چيْ+نْ+دِيْ)-[ه-اِس-مؤ]-د کپړې وړه ټکړه-د فلالين هغه ټوټه چې وسله پر صفا کولے شي.

**چينډخ** :- (چِيْ+نْ+ډَ+خْ)-[اپ (شن)-اِس-مذ-(مؤ-وا: چينډخه ج: چينډخې)]-چيندخ-چُونګښ- چونډخه.

**چينغړک** :- (چيْ+نْ+غَ+ړَ+كْ)-[اپ (شن)-اِس-مذ]-چمغړك.

**چِينګ** :- (چِيْ+نْ+ګْ)-[اپ-اِس-مذ-(مؤ-وا:چينګه-ج: چينګې)](۱) واز-ارت-خلاص. (۲) د ژړا اواز.

د خودبين سړي لـــــه ډېرې پاسلونې
خولۀ په لوړه چينګه ښۀ ده نۀ په سوال (حميد)

**چينګه خولۀ** :- (اِص)-وازه خولۀ-اوته خولۀ سوال ګره خولۀ.

تل به ئې زما لاس ته چې چينګه خولۀ نيولې وه
هغه راتـــــه وائي چې زۀ تاسره سيالي کوم (اسماعيل قمر)

**چِينګ پِينګ** :- (چينګ+پِيْ+نْ+ګْ)-[اپ-اِس-مذ]-انې بانې.

**چِينګ پِينګ کول** :- (اِص)-انې بانې کول-ځان غړول.

**چِينګ پِينګ کېدل** :- (اِص)- انې بانې کېدل.

**چينګخولے** :- (چِينګ+خُوْ+لے)-[اپ-اس-ص-مذ-وا-ج: چينګخولي-(مؤ: چينګخولې)] چينګ داړے-وازه خولۀ.

**چينګخولتوب** :- (چِينګ+خُوْ+لْ+تو+بْ)-[اپ-اِس-مذ]-خولۀ چينګول-داړې راويستل-خولۀ وازول.

**چينګکه** :- (چِيْ+نْ+ګْ+کَه)-[اپ (صو)اِس-مؤ-وا-ج: چينګکې]-يوه خړه توربخنه وړه مرغۍ چې هر کله اوازي کوي نو لکۍ په ځان پسې را اړوي.

**چينګول** :- (چِي+ن+ګَ+و+لْ)-[اپ (سو)-مص مت]-په نُوکونو د وړې پخې د يو ځاے نه خيرل اوسپړدل او داکتل چې هغه پوخ دے او کنه-که تشه کچې توکه وي نو وائي چې ګير دے-چې کچې دانې رپيوډ کې شوې وي نو وائي چې پۍ دے-چې پۍ ئې وچې شوې وي او دانې مضبوطې شوې وي نو وائي چې په ډاډه دے-او چې دانې وچې شوې او نچے وي نو وائي چې پوخ دے.

**چينګول** :- (چِيْ+نْ+ګ+و+لْ)-[اپ-مص مت]-(۱) وازول-ارتول-بيرتول-(۲) بُوکه ول- د کنځلو په ډول استعمالېږي.

**چينګونه** :- (چِيْ+نْ+ګ+و+نه)-[اپ-حمص]-(۱) وازونه-ارتونه-بيرتونه-(۲) بُوکونه-د کنځلو په ډول استعمالېږي.

**چِينګه** :- (چِيْ+نْ+ګه)-[اپ-ص-مؤ]-د وازې خولې د پاره استعمالېږي- لکه: چينګه خولۀ.

**چِينګه خولۀ** :- (اِص)وازه خولۀ.

**چينګې داړې** :- (اِص)-وازه خولۀ.

**چينګېدل** :- (چِيْ+نْ+ګې+د+لْ)-[اپ-مص لا]-وازېدل-ارتېدل-بيرته کېدل-خولۀ خلاصېدل.

**چينګېدنه** :- (چِيْ+نْ+ګې+د+نه)-[اپ-حمص]-وازېدنه-ارتېدنه-بيرته کېدنه-خلاصېدنه.

**چِينه** :- (چِيْ+نَه)-[اپ-اِس-مؤ-وا-ج: چينې]-چشمه-د مزکې نه د اوبو د راخکېدو ځاے.

وچ ګوګل زما به اخر شو په اور د هجر
څوم به مې لمدولو د چشمانو په چينه (علي خان)

**چينۍ** :- (چيْ+نۍ)-[اپ-اِس-مؤ]-چُونۍ-هغه فولادي قلم چې اوسپنه پرې پرې کولے شي.

**چينے** :- (چيْ+نَے)-[اَف:پ (قاموس) اِس-مذ]-سُور سپين اَس.

**چينے** :- (چيْ+نَے)-[اپ-اس-مذ-وا-ج: چينيان (مؤ:چينۍ)] د چين اوسېدُونکے د چين سره تعلق لَرُونکے.

**چِيني** :- (چي+نِي)-[اپ-اِس-مؤ]-(۱) بُوره- سپينه شکره. (۲) د چين ژبه.

**چېوتل** :- (چې+وَ+ت+لْ)-[اپ-(مر)-مص]-کنبېوتل-ګېرېدل.

**چېوتنه** :- (چې+و+ت+نه)-[اپ (مر) حمص]-چېوتۀ- کنبېوتنه-ګېرېدنه.

**چېوتُونکے** :- (چې+وَ+تُو+نْ+کے)-[اپ (مر)-فاع-مذ-وا-ج: چېوتُونکي-(مؤ: چېوتُونکې)]-کنبېوتُونکے-ګېرېدُونکے.

**چېوتۀ** :- (چې+و+ته)-[اپ (امر)-حمص]-وــــــــ چېوتنه ـ کنبېوته.

**چېوده/ څېوده** :- (چې+و+دَه)-[اپ (ب،خ)-اِس-مؤ-وا-ج: چېودې]سمڅه-ګاره-سمسته-په غرۀ کښې هغه غار چې خلق په دُوند باران کښې په کښې ځان پټوي-چيوه/ څېوده.

**چيوه** :- (چي+وَه)-[اپ (وز)-اِس-مؤ-وا-ج: چيوې] وــــ چېوده.

◈◈◈

# ځ

**ځ**:- (تْ+سي)-[اپ-حرف-مؤ-وا-ج:ځي ګانې]-د پښتو حروف تهجي لسم توری- ځينې خلق د دې توري تلفظ د سين په شان کوي- خو په اصل کښې دا ځان ته خپل اواز لري- چې د (ت+سي) ګډ اواز پېدا کوي.

**ځا** :- (تْ+سا)-[اپ-فا:چاه-اِس-مذ-وا-ج ځاهان]-کُوهے-کوئيې-کُوائې- کيائې.

چې چا ته ځا کني په ځا کښې پرېوځې
بــلا چــې غــوارې پــــه بلا کښېوزې (خوشحال)

**ځــا بــانې** :- (تْسا+با+نْ+ړَے)-[اپ (ظفـر)-ص-مـذ]-پرېوتوتـه نـزدې-غورزېدُونکے.

**ځابانې کېدل** :- (ظفر) اص-پرېوتو ته نزدې کېدل-غورزېدوته نزدې کېدل.

**ځابُون** :- (تْسا+بُوْ+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ-]-صابُون-د جامو يـا د بدن د پاکولو هغه څيز چې ځګ لري- ځابُونې.

**ځابُونې** :- (تْسا+بُوْ+نْ+ړِ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ] و____ ځابُون.

**ځابُونک** :- (تْسا+بُوْ+ن+کْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-د يو بُوټي ځګ چې جامې پرې وينځلے شي.

**ځاپ** :- (تْسا+پْ)-[اپ-اِس-مذ-وا-ج: ځاپُونه]-چاپ-نخښه-ښنکل (مور له ډېرې مينې خپل بچي ځاپوي- ځاپ کوي)

**ځاپېر** :- (تْسا+پې+رْ)-[اپ-ص-مذ-(مؤ-وا: ځاپېره-ج: ځاپېرې)]-ځاپېر-ځاپېره-چار چاپېره- ګېرچاپېر. لور په لور-ځارځرخُومه-لور د لوريه.

**ځاپېرول** :- (تْسا+پې+رَ+و+لْ)-[اپ-مص مت]-چاپېرول- ځارځرخومه کول.

**ځاپېرونه** :- (تْسا+پې+ر+و+نه)-[اپ-حمص]-چاپېرونه- ځار ځرخُومه کونه.

**ځاپېروُونکے** :- (تْسا+پې+رَ+وؤ+نْ+کے)-[اپ-فـاع-مذ-وا-ج: ځاپېروُونکي-(مؤ: ځاپېروُونکې)]-چاپېروُونکے-ځار ځرخوُنه کووُنکے.

**ځاپېرېدل** :- (تْسا+پې+رې+د+لْ)-[اپ-مص لا]-چاپېرېدل-ځارځر خُومه کېدل.

**ځاپېرېدنه** :- (تْسا+پې+رې+د+نه)-[اپ-حمص]-چاپېرېدنه-ځار ځرخُومه کېدنه.

**ځاپېربـــدُونکے** :- (تْســـا+پې+رې+دُوْ+نْ+کے)-[اپ-مـــف-مـــذ-وا-ج: ځاپېربـدُونکي-(مؤ:ځاپېربـدُونکې)]- چاپېربـدُونکے-ځارځرخومـه کېدُونکے.

**ځــاپېره** :- (تْسا+پې+رَه)-[اپ-اِس-مـؤ-وا-ج: ځـاپېرې]-څپېـره-تتـوره-چاپېره.

ببلتون پــه خــولۀ راکړې ځاپېرې زۀ لاعار نۀ لرم
دامې د عشق په سينه پروت زۀ تور لونګ لره ځم (اکبر زميندَاوري)

**ځاځکے** :- (تْسا+تْس+کے)-[اپ-اِس-مذ-وا-ج: ځاځکي]-ټکے-قطره-

که صدف غوندې سينه ګنجينه غوارې
لــه دريـابــه کــړه پــه ځـاځکي کفايت (حميد)

**ځاځکي ځاځکي** :- (اص)-(۱) ټکے ټکے-قطره قطره. (۲) لږ.

**ځاځکي ځاځکي مخ** :- (۱) ټکي ټکي مخ.

**ځاځکے** :- (تْسا+تْس+کَے)-[اپ (صوابي)-اِس]-قدرمني-ګراني-خوړوالے.

**ځاځکے کېدل** :- (صوابي) اص-قدرمن کېدل-ګرانېدل.

**ځــــاځوکے** :- (تْسا+تْ+سُــوْ+کَے)-[اَف:پ (قـــاموس)-اِس-مـــذ-وا-ج: ځاځوکي]-وړوکے ځاځکے-وړه قطره.

**ځــاځيرُوکي** :- (تْسا+تْ+سـې+رُوْ+کِي)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـؤ]- د واورې ډېره ورکوټې ټُکره.

**ځـادر** :- (تْسا+دَ+رْ)-[اپ-فـا: چادر-اِس-مذ-وا-ج: ځادرُونه]-(۱) چادر-پټکے-پړُونے-چکاله- ټيکرے (۲) د اوسپنې هغه تخته چې د مکان په چت اچولے شي-متل: ځادر غر دے لمن کمر دے.

**ځادر اچول** :- (اص)-(۱) ځادر کېښـول. (۲) ځـادر غـوړول. (۳) منت زاري کول. (۴) په زيارت منلے شوے ځادر غوړول.

**ځادر اخستل** :- (اص)-(۱) ځادر بيعه کول. (۲) د ځانه ځـادر پـه بوتـه کښې رانيول-د چا بې عزتي کول. (۳) روانېدل-رخصت کېدل.

**ځادر اغوستل** :- (اص)-(۱) په ځادر پټېدل-(۲) ځادر په سر کول-ځادر په سر اچول.

**ځادر باد ته نيول** :- (اص)-لُوند ځادر وچول.

**ځادر بُوزي کول** :- (اص)-د زنانه ؤ پړُونے داسے په سرکول چې ايلـه سترګې ئې په کښې ښکاري.

**ځادر بيتر کول** :- (اص)-ځادر پړده کول-د ځادر نه د پړدې کار اخستـل-ځـادر نيول.

**ځادر پرې اچول** :- (اص)-(۱) خوك په ځادر کښې پټول-پـه چـا ځـادر اچـول. (۲) په چا پرده اچول-(۳) په مړي ځادر غوړول.

**ځادر په سر اچول** :- (اص)-(۱) ځادر په سر کول-سرپټول-(۲) د نمر نـه د بـچ کېدو د پاره ځادر د سر د پاسه کېښودل.

**ځادر په سر کول** :- (اص)-(۱) ځادر په سر اچول-(۲) روانېدل-رخصتېدل. (۳) په ځان پرده اچول. (۴) د کونډې ښځې دويم مېړۀ کول.

**ځادر په شا اچول** :- (اص)-(۱) ځادر ټك وهـل-روانېدل-(۲) د ببلات کولـو نه پس د ځايه روانېدل.

**ځادر تربوزک کول** :- (اص) ځان د دُوړې يا د پېژندګلونـه بـچ کېدلو د پـاره تر پوزې پورې مخ په ځادر پټول.

**ځادر ټيپي کول** :- (اص)-ځادر تهه کول.

**ځادر ټک وهل** :- (اص)-و________ ځادر په شا اچول.

**ځادر ټولول** :- (اص)-(۱) ځـادر ګـردول-ځادر غونډول. (۲) د ځۀ څيـز د ټـړلـو د پـاره د ځادر ګوټونه را يو ځـاے کـول. (۳) د بستـرې ځـادر ټيپي کـول يـا غونډول.

بیـا لـه کومـه لـوریه بوی راغـے د څوُنپو
چې خاطر مې په هائې هوراغے د څونپو (خوشحال)

**زړهٔ د څونپو په الغه کښېوتل** :- (اَف)-اص-د زلفو په الوول کښې زړهٔ نښتـل- عاشق کېدل.

**څونپور** :- (تْ+سُوْ+نْ+پِ+و+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-ص]-چې لوې زلفې ئې وي-چې لوې څنې لري.

**څوُنپور ناوې** :- (څوُنپور+نا+وي)-[اَف:پ (قاموس)-ص]-(۱) د هغه سړي ښځه چې اوږدې څنې ئې وي. (۲)د خاوند ورور-لېور.

**څوُنسـو** :- (تْ+سُوْ+نْ+سـو)-[اَف:پ (قـاموس)-عـدد]-د شـمېر د پـاره استعمالېږي-څوئيمه-لکه:"څونسو سپاره"

**څــونگړے** :- (تْ+سُـوْ+نْ+گ+ړے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ-وا-ج: څونگړي]-هغه پتیره ډوډۍ چې پخه کړے شي او د ماشومانو په بیماری کښې خیرات کړے شي.

**څونګه** :- (تْ+سو+نْ+ګه)-[اپ-(ب،خ)-اِس-مؤ-وا-ج: څونګې]-څانګه.

**څونه** :- (تْ+سو+نه)-[اپ-کلمه]-څومره-څانه-څونې.

**څوُنې** :- (تْ+سُوْ+نې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-(۱) چا په داده خمتا چې دسترخوانونه او دېرستنو مخونه ترې نه جوړوي-(۲) هغه بزه چې غوړونه ئې واړهٔ وي.

**څونه څاره** :- (تْ+سو+نه+تْ+سا+ره)-[اَف:پ (قاموس)-کلمه-مؤ]-چون چرا-لیت ولعل-څهٔ خبره اتالونه.

**څونه والي** :- (څونه+وا+لې)-[اپ-اِس-مذ]-څومره والے-د څهٔ څیز شمار یا مقدار.

**څونـے** :- (تْ+سُـو+نَے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-د گنـو نـه د رس ایستو گانې.

**څونې** :- (تْ+سو+نې)-[اپ-کلمه]-څومره-څونه.

**څوول** :- (تْ+سْ+و+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-دړدول-تنګول.

**څوَول** :- (تْ+سَ+و+و+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]- په زړهٔ کښې څهٔ خبره نیول- په زړهٔ کښې څهٔ اراده کول-څهٔ خبره فرض کول.

**څـوو لے** :- (تْ+سْ+و+وَ+لے)-[اَف:پ (قـاموس)-مف-مذ-وا-ج: څوولي-(مؤ: څوولې)]-دړدولے-تنګ کړے.

**څـوو لے** :- (تْ+سَ+و+وَ+لے)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: څوولي (مؤ: څوولې)]-په زړهٔ کښې نیولے-فرض کړے-اراده کړے.

**څووم** :- (تْ+سو+و+مْ)-[اپ-ص-مذ-(مؤ: څوومه)]-څویم-د شمار د پاره استعمالېږي.

**څوونه** :- (تْ+سْ+و+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)حمص]-دړدونه-تنګونه.

**څوونه** :- (تْ+سَ+و+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-په زړهٔ کښې غوټه کونه-فرض کونه.

**څووُونکے** :- (تْ+سْ+و+وُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-فـاع-مـذ-وا-ج: څوووُنکي (مؤ: څووُنکې)]-دړدوونکے تنګوونکے.

**څووُونکے** :- (تْ+سَ+و+وُوْ+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-فاع-مذ-وا-ج: څـووُونکي (مـؤ: څـووُونکې)]-پـه زړهٔ کښـې غوټـه کـووُنکے-فـرض کوُونکے.

**څووه** :- (تْ+سـو+وه)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـؤ]-یو قسـم خوشبُویه بُوټے دے.

**څوه** :- (تْ+سْ+وَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-یو قسم خوشبویه بُوټے دے.

**څوه** :- (تْ+سْ+وَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: څومې]-سوه-د اَس یا د خرهٔ سُم.

**څوهټ** :- (تْ+سو+هَ+ټْ)-[اپ-اِس-مذ-مؤ-وا: څوهټه-ج: څوهټې]-بې کار-فضول-بې فائدې-عبث-بې ښې.

تر باز نه نور نور مرغونه غټ دي
هنر چې نهٔ لري څکه څوهټ دي (خوشحال)

**څـوَے** :- (تْ+سَ+وے)-[اَف:پ (قـاموس)-اِس-مـذ]-پـه ځـاؤ کښـې د کښېناستې ځاے-پناګاه-د پټېدو ځاے.

**څوے کول** :- (اَف)-اص-په ځاؤ کښې پټ کښېناستل-پټ کښېناستل.

**څوے** :- (تْ+سْ+وَے)-[اپ-اِس-مذ]-سوے کول-سوځېدل.

**څوېدل** :- (تْ+سْ+وې+د+لْ)-[اپ-مص]-(۱) سوېدل-د ډېرې یخنۍ له کبله د ګوتو دړد کول. (۲) د دانې دړد کول-په دانه کښې نو راټوکېدل.

**څوېـدلے** :- (تْ+سْ+وې+دَ+لے)-(پ-مف-مذ-وا-ج: څوېدلي (مؤ: څوېدلې)]-سوېدلے-دړد کړے-سوزش کړے.

**څوېدُونکے** :- (تْ+سْ+وې+دُوْ+نْ+کے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: څوېدونکي (مؤ: څوېدُونکې)]-دړد کوُونکے-سوزش کوُونکے-سوېدُونکے.

**څوېره** :- (تْ+سْ+وې+رَه)-[اپ-(وز)-اِس-مؤ]-و______ څورے.

**څهٔ** :- (تْ+سهٔ)-[اپ-کلمه]-(۱) د تپوس کلمه-لکه:"څهٔ دې وئیل؟". (۲) لږ-څېنې. (۳) کومه.

دا متل دے له برده نه
څـهٔ پـړده څهٔ ئې پروا (علي خان)

(۳) نه-ورنه-څخه (کوئینه)

ټپه: پر ما رښاورځ توره شپه ده
چې را څهٔ پټ شي ستا د سپین مخ مشالونه

**څهٔ خوړل څهٔ پرېښول** :- (اص)-لږ څیز خوړل او لږ پرېښول-په اندازه کارکول-د څادر سره پښې غزول.

**څهٔ ته** :- (تْ+سه+ته)-[اپ-کلمه]-څهٔ دپاره-څهٔ له-ولې.

**څهٔ چې** :- (تْ+سه+چې)-[اپ-کلمه]-کُوم څیز چې-کُوم شے چې.

**څهٔ خو** :- (تْ+سه+خو)-[اپ-کلمه]-(۱) لږ شان.

اشرف خان دې راتــه کښلي
څهٔ خو خوښ په خط د دهٔ یم (خوشحال)

**څهٔ د پاره** :- (تْ+سه+د+پا+ره)-[اپ-کلمه]-و ______ څهٔ ته.

**څهٔ ډول** :- (تْ+سه+د+وَ+لْ)-[اپ-کلمه]-څهٔ راز-څهٔ رنګه-څهٔ طور.

**څهٔ راز** :- (تْ+سه+را+زْ)-[اپ-کلمه]-و______ څهٔ ډول.

**څهٔ رنګه** :- (تْ+سه+رَ+نْ+ګه)-[اپ-کلمه]-و________ څهٔ ډول.

**څهٔ غواړے** :- (تْ+سه+غْ+وا+ړے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-د ماشونو یو قسم د بېډیو لوبه ده چې تیز ویز هم ورته وائي.

**څهٔ له** :- (تْ+سه+له)-[اپ-کلمه]-و________ څهٔ ته.

**څهٔ نه څهٔ** :- (تْ+سه+نه+تْ+سهٔ)-[اپ-کلمه]-لږ ډېر-کم زیات.

**څهٔ و څهٔ** :- (تْ+سه+وُ+ت+سهٔ)-[اپ-کلمه]-د انسان د بدن د شرم ځاے ته اشاره ده.

**څهٔ وخت** :- (تْ+سه+وَ+خْ+تْ)-[اپ-کلمه]-کُوم وخت-هغه وخت.

**څي** :- (تْ+سِيْ)-[اَف:پ (قاموس) کلمه]-د استفهام د پاره استعمالېږي-

ښۀ ته-ښۀ شی.

**ښې** :- (ت'سې)-[پ-حرف-مؤ-وا-ج: ښې ګانې]-خ- د پښتو الفبا د پټې لسم توری.

**ښېپیاکه** :- (ت'سې'+پ'+یا+که)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-هغه مالګه چې مصنوعي طور سره د مالګې د څګ نه جوړه شوې وي-دې ته زګند مالګه هم وائي.

**ښېته** :- (ت'سې+تَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ښېتې]-د تُورې شا- د تُورې پخ اړخ.

**ښېتې** :- (ت'سې+تې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-(۱) ښتکې-مترکه. (۲) د تبریخ اړخ.

**ښیخ** :- (ت'سې'خ)-[اَف:پ (قاموس)-ص-مذ-(مؤ-وا: ښیخه-ج: ښېخې)]-په زور ډك شوی-په کښې منډلو ډك شوی-سُوخلی.

**ښیخل** :- (ت'سې'+خ+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-په زور ډکول-په کښې منډلو ډکول-سُوخول.

**ښیخلی** :- (ت'سې'خَ+لی)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: ښیخلي (مؤ: ښیخلې)]-په زورډك شوی-سُوخلی.

**ښیخنګ** :- (ت'سې'+خَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و______ ښیخنه.

**ښیخنه** :- (ت'سې'+خ+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-ښیخنګ-سُوخنه-په زور اوکښې منډلو ډکونه.

**ښیخونکی** :- (ت'سې'+خُو'+ نْ+کی)-[اَف:پ (قاموس)-فاع-مذ-وا-ج: ښیخونکي (مؤ: ښیخرُونکې)]-په زور او کښې منډلو ډکوُونکی-سُوخوُنکی.

**ښېر** :- (ت'سې+رْ)-[پ-مذ]-غوندې-په شان-په رنګ.

کـه صاحب وُو که تورسم وُو
ختیك ډېر د دوي په ښېر شول (خوشحال)

**ښیرښیرکه** :- (ت'سې'+ر'+ت'سې'+رَ+که)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-شینتوپی-یوه قسم مرغۍ.

**ښیزخولی** :- (ت'سې'+ر'+خُ+و+لی)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-تور باتینګړ-یو قسم ترکاري.

**ښیرکی** :- (ت'سې+ر'+کی)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-ښیره [هغه پټې چې مستطیل او اُوږدوي].

**ښیرل** :- (ت'سې'+ر+لْ)-[پ-مص مت]-دوه ځایه کول-شلول-بژه کول.

**پرده ښیرل**:- (اِص)-(۱) پرده شلول. (۲) د چا راز ښرګندول-پټه خبره ښکاره کول.

**ډېر کمیسُونه ښیرل** :- (اِص)-ډېر کمیسُونه نړول-د ډېر عمر خاوند کېدل.

**سترګې ښیرل** :- (اِص)-بې شرمه کېدل-بې حیا کېدل.

**کفن ښیرل** :- (اِص)-کفن شلول-د ډېرې خطرناکې بیمارۍ نه رغېدل.

**ښیر لی** :- (ت'سې'ر'+لی)-[پ-مف-مذ-وا-ج: ښیرلي-(مؤ: ښیرلې)]-دوه ځایه شوی-شلېدلی-شلولی-بژه کړی-بژه شوی.

**ښېر لی** :- (ت+سې+ر'+لَی)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: ښېرلي]-سېرلی-د بزې بچی-ورغومی-چېلی.

**ښیرلې خبرې** :- (ت'سې'+ر'+لې+خ+ب+رې)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-ج]-سپینې خبرې-صفا خبرې.

**ښیرلې خبرې کول** :- (اَف)-اِص-صفا خبرې کول-سپینې خبرې کول.

**ښیرلی کار** :- (ت'سې'ر'+لی+کا+رْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-ډېر مشکل کار-ډېر سخت کار-د محنت کار.

**ښیر لی کار کول** :- (اَف)-اِص-مشکل کار کول-سخت کار کول-د محنت کار کول.

**ښېرمه** :- (ت'سې+ر'+مه)-[پ-اِس-مؤ]-(۱) ډېره-ښرمه-اړخ-ښنګ-خوا. (۲) مخامخ.

غم هغه دی هر چې ښېرمه وي و چاته
وړومبني واړه تر وروستو پورې هېر شي (رحمٰن)

(۳) سېلمه- تړول.

روغ عالم ئې د تهمت په غونډو ولې
واړۀ لوی راته د ښېرمې کړې کنځل (عبدالعظیم)

**ښېرمه کېدل** :- (اِص)-(۱) ډېره کېدل-ښنګ ته کېدل- ښرمه کول- خوا ته کېدل. (۲) مخامخ کېدل.

که قلعې غُوندې ټوپکو ته شي ښېرمه
د تمام ښهر لښکر به تړول حصار کړې (علي خان)

**ښېرمه** :- (ت'سې+ر'+مه)-[پ-ص]-غوُندې-په شان-شانته.

**ښیرنګ** :- (ت'سې'ر'+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس)-حمص] و______ ښیرنه.

**ښیرنګې** :- (ت'سې'ر'+نْ+ګې)-[پ-(ب،خ)-اِس-مذ]-تېروُسکی-چیر.

**ښیرنه**:-(ت'سې+ر+نه)-[پ-حمص]-ښیرنګ-شلونه-دوه ځایه کونه-بژه کونه.

**ښیروُنکی** :- (ت'سې'+رُو'+نْ+کی)-[پ-اِس فاع-مذ-وا-ج: ښیروُنکي-مؤ: ښیروُنکې]-شلوُونکی-دوه ځایه کووُنکی-بژه کوُونکی.

**ښیروُونکی** :- (ت'سې'ر'+وُو'+نْ+کی)-[پ-فاع-مذ-وا-ج: ښیروُونکي]-شلووُنکی-دوه ځایه کووُنکی.

ښـیروُونکی د قمر ئې
لاس د رب د پاره راکړه (علي خان)

**ښېره** :- (ت'سې+رَه)-[پ-اِس-مؤ-وا-ج: ښېرې]-(۱) مخ-موشاده-شکل.

دا زړۀ دی که قسمت که مې نور ښۀ کوډې موډې
چـې زۀ ئـې مـبـتلا د ستمګرې پـه ښېرې کړم (خوشحال)

(۲) فوټو-عکس-تصویر.

**ښېره اوښتل** :- (اِص)-ښېره بدلېدل-رنګ بدلېدل-د ښۀ غم د کبله مړاوی کېدل.

**ښېره بدلېدل** :- (اِص)-و ________ ښېره اوښتل.

**ښیره** :- (ت'سې'ره)-[پ-اِس-مؤ]-(۱) د نمر ښریکه- ښرك. (۲) چیرړه رنجه-لته.

**لمرښیره وهل** :- (اِص)-د نمر ښرك وهل-نمر راختل.

**ښیره** :- (ت'سَې+رَه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ښیرې]-اره.

**ښیرۍ** :- (ت'س+رۍ)-[پ-اِس-مؤ]-(۱) هغه مزکه چې ستانه دارو ته د امداد په طور وېړیا ورکړې شوې وي.

چې په عشق کښې ئې مې نۀ شوم ګنهګار شوم
نـورې ځـکه را پـه لاس د غـم ښـېرۍ کړه (علي خان)

(۲) عملنامه.

هـمېشه پـه کښې د غم عبارت لولم
د بناډۍ حرف مې دغم په ښېرۍ نښته (علي خان)

**ښیرۍ ورکول** :- (اِص)-چا ستانه دار ته د امداد په طور مزکه ورکول-تحفه ورکول.

**ښېرۍ** :- (ښْ+سې+رۍ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-(۱) هغه مزکه چې چا ستانه دارته د امداد په طور ورکړې شوې وي. (۲) لوے کارېز چې اُوبهٔ په کښې وي. (۳) يو قسم ازغن بُوټے-ازغکے-اغزکے-سپل.

**ښېرے** :- (ښْ+سې+رَے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-د کاغذ ټوټه-رقعه.

**ښېرې** :- (ښْ+سې+رې)-[اپ-ص]-شلېدلے-دوه ځایه-بڅه.

**ښېرې کول** :- (اص)-شلول-دوه ځایه کول-بڅه کول.

وعـنـقا وتـه به څهٔ لره ځوك دام ږدي
چې پر راشي ښېرې كاندې جال د واړو (خوشحال)

**ښېرې كېدل** :- (اص)-شلېدل-بڅه كېدل-دوه ځایه كېدل.

**پوست ښېرې لیدل** :- (اَف)-اص-(۱) څرمن شلېدلے لیدل. (۲) يو كار په نظر كښې ګران ښكاره كېدل.

**د خولې سـر ښېـرې لیـدل** :- (اَف)-اص-(۱) د چـا ټـوپۍ شـلېدلے لېـدل. (۲) ځوك بې پردې او په تنګسه كښې لېدل.

**ښېـرې پیـرې** :- (ښْ+سې+رې+پې+رې)-[اپ-ص]-ښېـرې وېـرې- بالكـل شلېدلے-بالكل بڅه.

**ښېرې ښېرې** :- (ښْ+سې+رې+ښْ+سې+رې)-[اپ-ص]-ټوټې ټوټې-ټكرې ټكرې-بالكل شلېدلے-بالكل بڅه-رنجې رنجې-تار تار.

غـم كـړهٔ زړهٔ د حمیـد هسـې ښېـرې ښېـرې
چـې حیـران ئـې پـه ګـنـډل شـو دریښـو

**ښېرې ښېرې كول** :- (اص)-بالكل شلول-بالكل بڅه كول-ټوټې ټوټې كول-ټكرې ټكرې كول-رنجې رنجې كول.

**ښېرې ښېرې كېدل** :- (اص)-بالكل شلېدل-بالكل بڅه كېدل-ټوټې ټوټې كېدل-ټكرې ټكرې كېدل-رنجې رنجې كېدل.

**ښېربدل** :- (ښْ+سې+رې+د+لْ)-[اپ-مص لا]-شلېدل-بڅه كېدل-دوه ځایه كېدل.

**سترګې ښېربدل** :- (اص)-سترګې شلېدل-بې حیا كېدل-سپین سترګې كېدل-شرم نهٔ لرل.

**ښېربـدنګ** :- (ښْ+سې+رې+دَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس) حمص]و--- ښېربدنه.

**ښېربدنـه** :- (ښْ+سې+رې+د+نه)-[اپ-حمص]-ښېربـدنګ-شـلېدنه-بـڅه كېدنه-دوه ځایه كېدنه.

**ښېربدُونكے** :- (ښْ+سې+رې+دُ+و+نْ+كے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ښېربدُونكې (مؤ: ښېربدُونكې)]-شلېدُونكے-بڅه كېدُونكے-دوه ځایه كېدُونكے.

**ښېرې سترګې** :- (ښْ+سې+رې+س+ت+رْ+ګې)-[اپ-ص-مؤ-ج]-وازې سترګې-بې حیا او بې شرمه سترګې-بې نَوه سترګې-بې شرمه-بې حیا بنیادم.

**ښېـرې ګرېـوان** :- (ښْ+سې+رې+ګْ+رې+وا+نْ)-[اپ-اس ص-مـذ]-چـې ګرېوان ئې شلېدلے وي.

كه په ښېرې ګرېوان خـانـدې لكه صبح
درست جهان به كړې درلاندې لكه صبح (حمید)

**ښېرې والې** :- (ښْ+سې+رې+وا+لے)-[اپ-اِس-مذ]-بڅه والے.

**ښېركه** :- (ښْ+سې+رَ+كه)-[اپ-(وز)-اِس-مؤ]-بُوچړۍ.

**ښېړل** :- (ښْ+سې+ړ+لْ)-[اپ-مص مت]-(۱) چېړل-بحث كول-تكلیف رسول.

**ښېړ لے** :- (ښْ+سې+ړَ+لے)-[اپ-مف-مذ-وا-ج: ښېړلې (مؤ: ښېړلې)]-(۱) چېړلے-بحث کړے. (۲)تنګ کړے.

**ښېړنګ** :- (ښْ+سې+ړَ+نْ+ګْ)-[اَف:پ (قاموس) حمص] و------- ښېړنه.

**ښېړنه** :- (ښْ+سې+ړ+نه)-[اپ-حمص]-(۱)چېړنه-بحث كونه-تنګونه تكلیف رسونه. (۲) تحقیق.

**ښېړنه كول** :- (اص)-تحقیق كول.

**ښېړُونكے** :- (ښْ+سې+ړُ+و+نْ+كے)-[اپ-فاع-مذ-وا-ج: ښېړُونكې-(مؤ: ښېړُونكې)]-(۱) چېړُونكے-بحث كوُونكے. (۲) تنګوُونكے-تكلیف رسوُونكے. (۳) تحقیق كوُونكے.

**ښېره** :- (ښْ+سې+ړه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ښېړې]-لېنې-قطار.

**ښېره** :- (ښْ+سې+ړَه)-[اپ (ظفر)-اِس-مؤ-وا-ج: ښېړې]-(۱) لېنې-قطار. (۲) ټولے. (۳) غُوټه.

بادشاه قطب الاقطاب دے امرګان چې ورته ګرځي
كـړې ښـېـړې تـړلي د هـر چـا په سر مېز رشته (خوشحال)

**ښېړۍ** :- (ښْ+سې+ړئ)-[اپ-اِس-مؤ]-(۱) يو قسم وُنه-بلوط. (۲) د سر چُوټكه-چوټې.

**ښېز** :- (ښْ+سې+زْ)-[اپ-اِس-مذ-وا-ج: ښېزونه]-شے.

**ښېزنې** :- (ښْ+سې+زْ+نې)-[اپ-اِس-مؤ]-سيزنې-سيجنې-هغه پټۍ يا مزے چې د ماشوم اُوربے پرے تړلے شي.

**ښېرمه** :- (ښْ+سې+ژْ+مه يا ښْ+ سې+ګْ+مه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-ښېزمه-ښېرمه.

**ښېښتن** :- (ښْ+سې+شْ يا ښْ+ سے+خْ+تَ+نْ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-(۱) ښښتن-مالك-بادار. (۲) خاوند-مېړهٔ.

**ښېښتول** :- (ښْ+سې+شْ يا ښْ+ سې+خْ+ت+ و +لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص مت]-تښتول-زغلول.

**ښېښتولے** :- (ښْ+سې+شْ يا ښْ+ سې+خْ+ت+وَ+لے)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: ښېښتولې]-تښتولے-زغلولے.

**ښېښتونه** :- (ښْ+سې+شْ يا ښْ+سې+خْ+ت+و+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-تښتونه-زغلونه.

**ښېښتوُونكے** :- (ښْ+سې+شْـي يا ښْ+سې+خْ+ت+ وُ+و+نْ+كے)-[اَف:پ-(قاموس)-فاع-مذ-وا-ج: ښېښتوُونكې)]تښتوُونكے-زغلوُونكے.

**ښېښتېدل** :- (ښْ+سې+شْ يا ښْ+ سې+خْ+تې+د +لْ)-[اَف:پ (قاموس) مص لا]-تښتېدل-زغلېدل.

**ښېښتېدلے** :- (ښْ+سې+شْ يا ښْ+سې+خْ+تې+دَ+لے)-[اَف:پ (قاموس) مف-مذ-وا-ج: ښېښتېدلې (مؤ: ښېښتېدلې)]-تښتېدلے-زغلېدلے.

**ښېښتېدنه** :- (ښْ+سې+شْ يا ښْ+سې+خْ+تې+د +نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-تښتېدنه-زغلېدنه.

**ښېښتېدُونكے** :- (ښْ+سې+شْ يا ښْ+سې+خْ+تې+ دُ+و+نْ+كے)-[اَف:پ (قاموس)-فاع-مذ-وا-ج: ښېښتېدُونكې]-تښتېدُونكے-زغلېدُونكے.

**ښېكل** :- (ښْ+سې+ك+لْ)-[اَف:پ (قاموس)-مص مت]-لم، لړمون يا داسې بل ښېز مېده كول-ټكرې ټكرې كول.

**ښېكلے** :- (ښْ+سې+كَ+لے)-[اَف:پ (قاموس)-مف-مذ-وا-ج: ښېلكې (مؤ: ښېكلې)]-لم يا لړمُون مېده كړے-ټكرې ټكرې كړے.

**ښېكنه** :- (ښْ+سې+ك+نه)-[اَف:پ (قاموس)-حمص]-لم يا لړمُون ټكرې ټكرې كونه يا مېده كونه.

**ثیکوُنکے** :- (تْ+سيْ+کوُ+نْ+کے)-[اَف:پ (قاموس)-فاع-مذ-وا-ج: ثیکوُنکي-(مؤ: ثیکوُنکې)]-د لم یا لرمُون مېده کوُونکے یا ټکړې ټکړي کوُونکے.

**ثیکه** :- (تْ+سيْ+که)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ثیکې]-د پټکي یا دستار شمله-شکلے- شلکے.

**ثېکے** :- (تْ+سې+کے)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مذ]-د ماشومانو یوه بیماري.

**ثیلمڅي** :- (تْ+سيْ+ل+مْ+تْ+سيْ)-[پ-اِس-مؤ]-چیلمچي-د لاسونو وینځلو لوښے.

**ثېلمه** :- (تْ+سې+لْ+مه)-[پ-ص-مؤ]-(۱) ټول-تمام. (۲) غاړه-کناره-اړخ.

**د ثېلمې راتلل** :- (اِص)-ټول راتلل-په هېڅ راتلل.

**د ثېلمې وژل** :- (اِص)-ټول وژل-یوُ هم نهٔ پرېښودل.

**ثیلی** :- (تْ+سيْ+لیٔ)-[پ-اِس-مؤ]-سیلۍ-سخته تنده هوا.

**ثیلی** :- (تْ+سې+لیٔ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-تاؤ-توان-وَس.

**ثینځبنه** :- (تْ+سيْ+نْ+دْ+زَ+شه یا خه)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ-وا-ج: ثینځبنې]-چونگبنه-چیندخه-چونډخه-ثینگبن

**ثینزرے** :- (تْ+سيْ+نْ+زْ+رَے)-[پ-اِس-مذ-وا-ج: ثینزري]-تنزرے-چینجرے.

**ثینگبن** :- (تْ+سيْ+نْ+گ+شْ یا خْ)-[اف:پ (قاموس)-اِس-مذ-وا-(مؤ-وا-ثینگبنه-ج: ثینگبنې)]-و________ ثینځبنه.

**ثینگکه** :- (تْ+سيْ+نْ+گَ+که)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-ثینگۍ-یوُ قسم ډېره وړوکې مرغۍ.

**ثینگۍ** :- (تْ+سيْ+نْ+گیٔ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ] و______ ثینگکه.

**ثینور** :- (تْ+سيْ+نَ+وَ+رْ)-[پ-اِس-مذ]-غبرگون-غبرگولے-د اسمان دولسو برجُونو کښې د یو برج نوم- جوزا.

جوزا، سرطان، خرداد او تیردي په حساب کښې
پښتونې ثینور او کني کبر ئې حساب دے (خوشحال)

**ثینی** :- (تْ+سيْ+نیٔ)-[اَف:پ (قاموس)-اِس-مؤ]-نخۍ-نرے تار یا مزے-ډورۍ.

◈◈◈

# ح

**ح** :- (حې) (حرف ، مو ، وا ، ج: حې ګانې) د پښتو ژبې د الف بې په پټۍ کښې یوؤلسم توری. دا ټکی په هغه لفظونو کښې راځي کوم چې د عربۍ ژبې نه پښتو ته راغلي دي. اواز ئې د حلق نه راوځي. خو اکثر پښتانۀ ئې تلفظ په الف بدلوي. د ابجدو په حساب ئې اعداد اتۀ کېږي.

**حاتم** :- (حا + ت + مْ) [ع ، اس ، مذ ] (۱) د عربي د طائي قبیلې یو سخي سردار حاتم طائي (۲) سخي، ښۀ ځوان

د خاتم د داد نغمه وربـاندې نۀ آورم
چې درانۀ کړۀ غوږ د صبر په ګوهر ما — حمیدبابا

**حاتم طائي** :- (حاتم+طا+ئي) [ع، اس معرفه، مذ]

بې دنیا حاتم طائي د زمـانـې وو
ځان ئې پاک ساتۀ د زرو له د نسَ — علیخان

**حاجب** :- (حا+ج+بْ) [ع.اس.مذ.وا.ج.حاجبان (مؤ، وا: حاجبه. ج: حاجبې] څوکیدار، پهره دار، اردلي، دربان.

حاجبانو ته وئیل کا — که مې اورسي دعا — (خوشحال بابا)

**حاجَت** :- (حا+جَ+تْ) [ع، اس،مذ،وا،ج: حاجتونـه، حاجتینـه] (۱) مطلب، ضرورت، خواهش، امید ، (۲) موتازي.

و هغو و ته چې خدا ے په خپله اوښود
څۀ حاجت ئې د رحمن په ګفتګو شي — رحمن بابا
تـۀ قبـلـه وې د هـر چا د حاجـتـونـو
ستا دعا د خدا ے په در وه مستجاب — خواجه محمد بنګښ

**حاجت پېدا کېدل**:. اص حاجت راتلل، حاجت لرل، موتازه کېدل،

**راتلل**: اص و ــــ حاجت پېدا کېدل.

**لول**: اص و حاجت پېدا کېدل

**حاجتمن** :- (حاجت+مَ+نْ (پ، اس ص مذ ، مؤ=وا: حاجتمنه، ج: حاجتمنې) (۱) حاجتمند ، اړیا ، موتاز، حاجتي، ضرورتمند ، غرض مند (۲) خوار، نیستمن، تنګ لاسې.

**کول**. اص. موتازه ول، نیستمن کول

**کېدل**:. اص موتازېدل، نیستمن کېدل

**حاجتمند**:- (حاجت+م+ن+د) [فا ، اس ص، مذ ، وا ، ج: حاجتمندان مؤ، وا: حاجتمنده، ج: حاجتمندې] وـــــــــحاجتمن

**حاجتمنـدي**:- (حاجـت+مَنْ+دِي) [فـاتر، ص،مـؤ] حـاجتمني، موتـازي، اړیاګیري، اړیاتوب

**حاجتمني**:- (حاجت+مّ+نيْ) [پ،ص،مؤ] و حاجتمندي

**حاجتي**:- (حا+ج+تي) [پ،اس ص] و حاجتمن

**حـاجي**:- (حـا+جي) [ع، اس ص، مـذ وا ، ج: حاجیـان، مـؤ، وا: حاجنـه ج: حاجنې] هغه څوک چې حج ئې کړې وي.

د مکې په بزرګۍ کښې هېڅ شک نۀ شته
ولې خـــر بـــــه حـاجي نۀ شي په طواف — رحمن بابا

**حادثـه**:- (حا+د+ثَـه) [ع،اس،مـؤ، وا ، ج: حـادثې] (۱) نـوې خبـر ، (۲) واقعـه، تکلیف، ناځاپې پېښـه.

تو ے کړه په هنګام د حادثې ساقي په جام کښې
مے چې باد راپاځي په زجاج کښې ښـۀ مـصباح — خوشحال

**حادثه پېښېدل**:. اص. ناځاپي واقعه پېښېدل

**حـــاذِق**:- (حـــا+ذِ+قْ) [ع،اس،مـــذ ،وا ج: حاذقـــان، مؤ،وا:حاذقــــه،ج: حاذقې] پوهه، هوښیار ، په خپل فن کښې کمال ته رسېدلے، تجربه کار.

د بدخوي د خوي علاج ملک الموت د ے
نـۀ پـه ډېـر عــلاج خبـر حکیـم حـاذق — خوشحال

**حاســد**:- (حـا+س+دْ) [ع،اس ص، مــذ وا. ج: حاسـدان، مــؤ،وا: حاسـده ج: حاسـدې] حسـد کـوونکے، کینـه نـاک، بُغـض لـرونکے- د بـل پـه ښـېګړه سوځېدونکے.

حاسدان به ئې زوال د دولت غواړي
همېشه د لوګوي و ځان ته سپاندې — خوشحال

**حاشه**:- (حا+شَه) [پ،ع: حاشیه، اس مؤ،وا ،ج: حاشې] (۱) ګوټ، اړخ، ډډه، حاشیه (۲) دَ کتاب د پاڼې چار چاپېره ډډې (۳) هغه شرح چې د کتاب په صفحه دَ متن نه بهر په غاړو یا ډډو لیکلے شي.

ځکه نۀ کوم اسره د یار و خط ته
اسانېږي مشکل مـتن په حاشو — حمید

**حاشیه**:- (حا+شَ+یه) [ع،اس،مؤ،وا ،ج:حاشیې] وــــــ حاشه

**ــــ ارائي کول**: [اص] په خبره کښې مبالغه کول.

**پاځول**: اص. په حاشیه لیکلے لیك لوستل حاشیه کتل.

**پـرې خېـژول**: اص (۱) دَ حاشیې پـه ډول د کتـاب پـه مـخ یـا پـه کاغـذ کـرښـې راکښـل (۲) پـه کتـاب حاشـیه لیکـل (۳) پـه خبـره کښـې مبالغـه کـول حاشیه ارائي کول.

**پرېښول**: اص د کتاب د متن د کرښې نه بهر ګېر چاپېر لږ ځا ے خالي پرېښول

**حاشـیه**:- جـوړول. اص. حاشیه راکښـل، حاشـیه لګـول، د کتـاب پـه پاڼـه ګېـر چاپېر کرښې راکښل چې د هغې دننه متن لیکلے کېږي.

**ـــ راکښل**: اص. و حاشیه جوړول

**ــــ کتل**، اص ـ و ــــ حاشیه پاځول،

**ــــ لګول**، اص ـ و ــــ حاشیه جوړول

**ــــ لیکل**، اص ـ دَ کتاب د متن نه بهر په پاڼه د ټکي یا د واقعې تشریح لیکل

**حاصل**:- (حا+ص+ل) [ع،اس،مذ] (۱) د څه څیز بقایا (۲) پېداوار (۳) نتیجه (۴) خلاصه، مطلب (۵) ګټه، فائده، امدن، سُود.

حاسد مه شه هغه زېب له دُرمرجانَ
چې دِ څیرې کا غـوړونـه زما جـانَ — حمید

**ــــ تفریق**: اص ـ هغه رقم یا عدد چې د منها کولو یا ایستلو نه پس باقي پاتې شي

**ـــــتقسیم**: ، اص: ـ دَتقسیمولو نه پس چې څۀ ځواب راوځي خارج قسمت، هغه عدد یا عددونه چې د لوے عدد په ورکوټي عدد باندې د تقسیم کولو نه پس په لاس راشي

**ـــــجمع**: ، (اص). میزان، مجموعه، هغه عددونه چې د جمع کولو یا جمع لګولو نه پس راوځي.

**ـــضرب**: (اص) هغه عدد چې د ضرب ورکولو نه پس یا څو چنده کولو نه پس په لاس راشي

**ـــــمصدر**: ، (اص) هغه لفظ چې د یو فعل یعني کار نتیجه ښائي یا ظاهروي لکه د لیکل نه لیکنه .

**حاصلول**:- (حا+ص+ل+و+ل) [پ،مص مت] بودول، تر لاسه کول، موندل، ګټل، پیدا کول، جمع کول ، لاس ته کول.

**حاصلونه**:- (حا+ص+ل+ؤ+نه) [پ،حمص] بُودونه، تر لاسه کونه، موندنه، ګټنه، پیدا کونه، جمع کونه لاس ته کونه.

**حاصلوُونکے**:- (حا+ص+لَ+وُو+نْ+کَے) [پ،اس فاع،مذ،وا،ج: حاصلوُونکي، مؤ، حاصلونکې] تر لاسه کووُنکے، موندوُنکے، ګټونکے، پیدا کووُنکے.

**حاصلېدل**:- (حا+ص+ې+لې+د+لْ) [پ،مص لا] بودېدل، تر لاسه کېدل، پیدا کېدل

**حاصلېدنه**:- (حا+ص+لې+د+نه) [پ، حمص] بودېدنه، تر لاسه کېدنه، پیدا کېدنه، حاصلېدۀ.

**حاصلوُونے**:- (حا+ص+لَ+وُوْ+نَے) [پ، اس فاع، مذ، وا، ج: حاصلوُوني، مؤ: حاصلوُونې] وــــحاصلوُونکے

**حاصلېدُونکے**:- (حا+ص+لې+دُو+ن+کے) [پ،حف،مذ،و.ج: حاصلېدُونکي مؤ: حاصلېدونکې] بودېدونکے، تر لاسه کېدونکے، جمع کېدونکے، په لاس راتلونکے، پیدا کېدونکے.

**حاصلېدۀ**:- (حا+ص+لې+دَه) [پ، حمص] وــــحاصلېدنه

**حاضر**:- (حا+ض+ر) [ع، اس، مذ،مؤ، وا: حاضره ج: حاضرې] موجود، مخامخ ولاړ، تیار، مخاطب.

د فساد فکر مې نشته خدا ے حاضر د ے
خپل ساعت به تېروم عمر آخر د ے (خوشحال)

**حاضرباش**:- (حاضر+با+ش) (فا،اس ص، مذ، مؤ، وا: حاضر باشه ج: حاضر باشې] حاضر اوسېدوُنکے، دَ وخت پابندي کووُنکے- هغه ښوك چې د چا په خدمت کښې هر وخت ملا تړلے موجود وي

**حاضر باشي**:- (حاضر+با+شي) [پ،اس،مؤ] موجودګي، د وخت پابندي، هر وخت حاضر اوسېدنه.

**حاضر جواب**:- (حاضر+ج+وا+ب) [فا، اس ص، مذ، مؤ، وا: حاضر جوابه ج: حاضر جوابې) حاضر ځواب، سمدستي جواب ورکووُنکے.

**حاضر ځواب**:- (حاضر+دَز+وا+ب) [پ، اس ص، مذ، مؤ، وا: حاضر ځوابه، ج: حاضر ځوابې] وــــحاضر جواب

**حاضر ضامن**:- (حاضر+ضا+م+ن) [فا، اس ص، مذ، وا، ج: حاضر ضامنان، مؤ، وا: حاضر ضامنه، ج: حاضر ضامنې] هغه ښوك چې د چا عدالت ته د حاضرېدو ذمه واخلي.

**حاضرضامني**:- (حاضر+ضا+مِ+ني) [پ،اس،مؤ] د چا په عدالت کښې د حاضرولو ضمانت کول یا ذمه واري اخستل.

**حاضر ناظر**:- (حاضر+نا+ظ+ر) [ع، اس، مؤ، وا ] ۱)موجود او لیدونکے ، (۲) د الله پاك صفت

**حاضرول**: (حا+ض+رَ+و+ل) [پ -مص مت] ، موجودول ـ مخامخ کول ـ پېش کول ـ تیارول ـ

**حاضرونه**: (حا+ض+رَ+و+نه)، [پ ـ حمص] ، موجودونه ـ پېش کونه ـ تیارونه ـ مخامخ کونه.

**حاضرونکے**: (حا+ض+رَ+و+وُو+ن+کے) [پ ـ اس فاع ـ مذ ـ وا ـ ج: حاضرونکني ـ مونث: حاضرونکې ] ، حاضروونے ـ موجودوونکے ـ وړاندے راوستونکے ـ مخامخ کونکے .

**حاضروونے**: (حا+ض+رَ+وو+نے)، [پ ـ اس فاع ـ مذ ـ وا ـ ج: حاضروني ـ مونث: حاضرونې ] ، وـــــحاضرونکے .

**حاضري**: (ح +ض +ري)، [پ تر ـ اس ـ مو ـ وا ـ ج: حاضرئ ، حاضریانې] (۱) موجودګي (۲) پېشي (۳) ناشته، نهاري د سحر ډوډۍ

**ـــــحاضري اخستل**: ، اص ـ ګڼل، شمارل، حاضري لګول نوم اخستل او په فهرست کښې د نوم د وړاندې د حاضرۍ نخښه لګول

**ـــــکول**: ، اص (۱) موجودېدل ، پېش کېدل حاضري ورکول (۲) د سحر ناشته یا نهاري خوړل

**ـــــلګول**: ، اص ـ (۱) حاضري اخستل (۲) حاضرېدل، موجودېدل، پېش کېدل

**ـــــورکول** ، اص ـ (۱) حاضرېدل، پېش کېدل (۲) د سحر ناشته یا نهاري ورکول

**حاضرېدل**:- (حا+ض+رې+د+ل) [پ،مص لا] موجودېدل، وړاندې کېدل، پېش کېدل، مخامخ کېدل

**حاضرېدنه**:- (حا+ض+رې+د+نه) [پ، حمص] حاضرېدۀ، موجودېدنه، وړاندې کېدنه، پېش کېدنه مخامخ کېدنه.

**حاضرېدونکے**:- (حا+ض+رې+دُو+ن+کے) [پ،مف،مذ،وا،ج: حاضرېدوُنکي مؤ: حاضرېدُوېنکې] موجودېدُونکے، وړاندې کېدُونکے، پېش کېدوُنکے، مخامخ کېدوُنکے.

**حاضرېدۀ**:- (حا+ض+رې+ده) [پ، حمص] وــــ حاضرېدنه

**حاطه**:- (حا+طه)[پ،ع: احاطه، اس، مؤ، وا ج: حاطې] ختانه، په دیوالونو یا پولو کښې راګېره مزکه ، غولے

**حافظ**:- (حا+ف+ظ) [ع،اس،مذ ، وا، ج: حافظان مؤ، وا: حافظه، ج: حافظې] (۱) حفاظت کوونکے، نګهبان (۲) هغه ښوك چې ټول قرآن ورته یاد وي (۳) نابینا: په سترګو ړُوند. آئي پي جي. (۴) د الله تعالي یو صفاتي نوم (۵) د فارسۍ د یو لوے شاعر نوم حافظ شیرازي (۶) په سوات کښې د الپورۍ کلي یو شاعر چې حافظ الپوري به ئې ورته وئیل

**حافظه**:- (حا+ف+ظَه) [ع، اس، مؤ، وا، ج: حافظې] یاد یاداشت، د یاد ساتلو قوت

**ـــــتېزېدل**: ، اص. یاد مېړني کېدل، د یادو طاقت زیاتېدل.

**ـــــخرابېدل**: ، اص ـ حافظه کمزورې کېدل، یاد کمزوري کېدل هېر زیاتېدل، هېر ځا ے کېدل.

**ـــــکمزوري کېدل**: اص. وـــحافظه خرابېدل.

**ـــــ په حافظه زور اچول**: اص.هېره خبره په کوښښ سره رایادول.

**ـــــد حافظې نه وتل**: اص ـ هېرېدل، د یادو نه وتل یاد نه پاتې کېدل.

**حاکم**:- (حا+ك+مْ) [ع،اس،مذ،وا،ج: حاکمان، مؤ وا: حاکمه، ج: حاکمې] سردار، حکومت کووُنکے، سرکار آقا، مالك.

که حاکم رعایت هیڅ ورسره نۀ کا
رعیت لاکوتاه اندېش بې اعتبار شۀ علیخان

پـه سـبـب د ظـالـمـانـو حاکمانو
ګور او کور او پېښور درې واړه يو دي رحمن بابا

**حاکم اعلي**:- (حاکم+اَ+عْ+لا) [ع، اس ص، مذ] (۱) لوے حاکم (۲) خدا ے تعالیٰ، حاکم بالا.

**حاکم بالا**:- (حاکم+با+لا) [فا، اص ص، نه] و ـــــ حاکم اعلي.

**حاکمانه**:- (حا+ك+ما+نه) [فا، ص،مؤ]د حاکم په ډول، د حاکم په طور.

**حاکمتوب**:- (حاکم+تو+ب) [پ،اس،مذ] حاکمي، سرداري، حکومت.

**حاکمي**:- (حا+ك+مي)[پ، اس، مؤ] (۱) و ـــ حاکمتوب (۲) رعب داب.

ـــــ **ښرګندول**:، اص، هسې رعب داب کول- خپله خبره په چا په زور منل.

ـــــ **کول**:، اص، (۱) حاکمتوب کول، حکم چلول، (۲) د کلي جرګه چې يوه خبره فېصله نهٔ کړي هغه حکومت ته سپارل.

**حـال**:- (حـا+ل) [ع،اس،مـذ ،وا،ج: حالونـه] (۱) دا وخـت، پـه دې وخـت (۲) حالت، کېفيت، حقيقت.

چې ئې لاهې د ياري د اشنائئ کړي
و خوشحال وته ښکاره شو حال د دواړو خوشحال

(۳) موجوده زمانه (۴) طاقت، توان، قوت، زور (۵) بې خودي، وجد (۲) په قواعد کښې د فعل هغه حالت چې موجوده زمانه يا وخت ښائي (۷) اوس اوس اوس، في الحال.

ـــــ **احوال**:، اص، حالت، کېفيت، مزاج، طبع.

نـهٔ مې زړهٔ په سرداري درست خوشحال دے
نـهٔ زما د خپل خاني څـهٔ حال احـوال دے (خوشحال)

ـــــ **احوال معلومول**:، اص .دخبر خبريت تپوس کول، حال زده کول.

ـــــ **اخستل**:، اص، حال معلومول، خبر اخستل، حال پوښتل، حال زده کول، حال نيول.

ـــــ **بدلول**:، اص، (۱) په بل رنګ کول، شکل بدلول (۲) چاته زياته سزا ورکول د چانه د بوسو سخې جوړول.

ـــــ **بدلېدل**:، اص . (۱) پـه بـل رنګ کـېـدل ، شـکـل بدلېـدل (۲) نيـتمن کېدل، خوارېدل (۳) د مريض مرګ ته نژدې کېدل.

ـــــ **حال بيانول**:، اص. وئيل، پته خبره ښرګندول.

ـــــ **پوښتل**: اص . و ـــــ حال اخستل.

ـــــ **خرابول**:، اص. حال بدلول، ډېر وهل ټکول.

ـــــ **خرابېدل**: اص (۱) حال بدلېدل، خوارېدل (۲) د رنځـور مـرګ تـه نـزدې کېدل

ـــــ **راتلل**: اص (۱) خبر راتلل (۲) په جذبه کښې بېهوشه کېدل يا بې خوده کېدل.

ـــــ **زبون کېدل**:، اص.حال خرابېدل، په بد حال کېدل.

ـــــ **زده کول**:، اص.و ـــــ حال اخستل.

ـــــ **معلومول**:، اص . و ـــــ حال اخستل.

ـــــ **معلومېـدل**:، اص .(۱) د حـال نـه خبرېـدل (۲) د چـا اصـليت ښـکاره کېدل.

ـــــ **نورول**:، (اص). حال بدلول، حال خرابول.

ـــــ **نورېدل**:، (اص). حال بدلېدل، حال خرابېدل- په بل حال کېدل.

ـــــ **نيول**: (اص).و ـــــ حال اخستل.

ـــــ **ورکول**:، (اص) د حال احوال نه خبرول- د واقعاتو تفصيل بيانول.

ـــــ **وئيل**:، (اص). و ـــــ حال بيانول.

**بې حال کېدل**:- اص .بېهوشه کېدل، د بدن نه دم وتل- بې مجاله کېدل.

**پـه حـال کـېـدل**:- اص: (۱) پـه هـوش کـښې راتـلـل، پـه خـود کـېـدل (۲) کېفيت معلومېدل، د اصليت نه خبرېدل.

**حالـت**:- (حـا+لَ+ت) [ع، اس، مـذ ، وا ، ج: حالتونـه] کېفيت، حـال، صـورت، پېښه.

ـــــ **بدلېدل**:، اص: . (۱) د څهٔ څيز صورت شکل کښې فرق راتلل (۲) د بيمار حـال خرابېـدل (۳) خوارېـدل (۴) غصـه کېـدل (۵) دښـهٔ نـه بـد يـاد بـه نـه ښهٔ کېدل

ـــــ **خرابېدل**:، اص (۱) د بيمـار بيمـاري زياتېـدل ، د رنځـور مـرګ تـه نـزدې کېـدل (۲) نېـسـتمن کېـدل، خوارېـدل- دولـت دلاسـه وتـل (۳) نېسـتمن کېـدل، خوارېـدل دولـت دلاسـه وتـل (۳) عهـده کمېـدل، زور کمېـدل (۴) خراب وخت راتلل، د زماني پېرخوړل.

ـــــ **ښهٔ کېدل**:، اص .(۱) د بيمار صحت موندل په بيمـاري کښې فـرق راتلـل (۲) شته من کېدل، دولت موندل (۳) ترقي کول (۴) پـه يـوه سيمه امـن او قلارې راتلل.

**حالي**:- (حا+لي)[ع، ص، مذ] د حال، اوسنے، موجوده، ددې وخت.

**حالي**:- (حا+لي) [ع، اس معرفه، مذ] داردو ژبې يو مشـهور شـاعر پـه نـوم ئـې خواجه الطاف حسين او تخلص ئې حالي ؤ د دهٔ مسدس ډېر مشـهور دے.

**حـالي**:- مـوالي: اص، ملګـري ، يـاران دوسـتان يـو ځـا ے سـره ناسـته پاسـته کوونکي

**حامل**:- (حا+م+لْ) [ع،اس فاع، مذ ، وا ،ج: حـاملان مـؤ، وا: حـامله، ج: حـاملې] (۱) پنډ يا بار اُوچتوونکے څهٔ څيز پورته کوونکے يا وړونکے (۲) څـهٔ څيـز راوړُونکے لکه حامل وحي ، حامل رقعه.

**حامله**:- (حا+م+له) [ع، اس ص، مؤ، وا ،ج: حاملې] اُمېدواره، د حمـل سـره، هغه ښځه چې بچے ئې په ګېډه کښې وي.

**حامي**:- (حا+مي) [ع،اس،مذ ،وا ،ج: حاميان] مددګار، ملګـرے، مرسـتيال.

**حاوي**:- (حـا+وِيْ) [ع،اس ص] . (۱) ګېـروُونکے، احاطـه کـووُنکے، خـور، (۲) قابو موندوُنکے، غالب، (۳) په څهٔ فن کښې کامل يا مـاهر، لکـه ,,فلانـے په خپل کار حاوي دے]،

**حائـل**:- (حـا+ي+ل) [ع، ص، مـذ ،مؤ،وا: حائلـه ج: حـائلې] پـه مېـنځ کښـې راتلونکے، منع کوُونکے -اړ، بندوُونکے بندېز، پرده.

ـــــ **کېدل**:، اص: . په مېنځ کښې راتلل، بندېز پيدا کول، پړه جوړېدل.

**حُب** :- (حُ+بْ) [ع، اس، مذ] مينه، محبت، دوستي .

هر چې حُب د عاشقئ لري په زړهٔ کښې
که پـه قطع صد ساله شي هم زلمے دے رحمن بابا

ـــــ **کول**:، اص.مينه کول، دوستي کول .

ـــــ **کېدل**:، اص ، مينه کېدل، دوستي کېدل .

ـــــ **للول**:، اص، مينه لرل، تعلق لرل، دوستي لرل.

**حُباب**:- (حُ+با+بْ) [ع، اس، مذ] د اوبو په سر بربوکئ، خوټئ ، غولئ.

په واده ئې زړهٔ خوشحال مه کړه خوشحالَ
د وفـا طمع څـوک نـهٔ کـا لـه حُبـابَ خوشحال بابا

ـــــ **طوره**:، اص (۱) د اُوبو د بربوکئ په شان (۲) کچه، نيمګړے، عارضي.

چې د هجر د سېلاب په مخ کښې راغلم
حباب طوره مې خپل عمر په شماره کهٔ عليخان

**حُبس**:- (حَ+بْ+س) [ع، اِس، مذ] (۱) بند، قيد (۲) خُوپ، ګوپ، د هوا بندېز

**حبش**:- (حَ+بَ+ش) [ع، اِس معرفه] (۱) په افريقه کښې يو ملك حبشه (۲) د حبشي خلق.

بيا حبشو په کعبه تړلے لام دے حمزه شينواري

**حبشـي**:- (حَ+بْ+شـي) [ع، اِس، مـذ، وا، ج: حبشـيان مـؤ، وا: حبشـنه ج: حبشنې] (۱) د حبش د ملك اوسېدونکے (۲) تور، تور رنګے.

**حبطه**:- (حَ+بَ+طه) [ع، ص، مؤ] بې کاره، بې فائدې.

دا نا نهٔ ئې چې دې مغز وي

بــې دانــې حبطه بُـوسـه خوشحال بابا

ـــــ **کول**، اِص.- حال خرابول، بربادول.

ـــــ **کېدل**، اِص.-حال خرابېدل، بربادېدل.

**حبيب**:- (حَ+بي+بْ) [ع، اِس، مذ، وا، ج: حبيبان مؤ، وا: حبيبه، ج: حبيبې] (۱) ملګرے، يار، دوست (۲) د رسول کريم ﷺ صفتي نوم.

پـه زړګونو مې دنيا وهر چا ورکړه

پـه جهان کښې پيدا نهٔ شو يو حبيب خوشحال بابا

**حبيب الله**:- (حَ+بي+بُ+لْ+لا+هْ) (۱) د خدا ے دوست (۲) د مسلمانانو يو عام نوم.

چې دا دوه چارې لري حبيب الله دے

پـه وئيل نـهٔ ده دا چار پـه عنايـت ده خوشحال بابا

**حتي**[1]:- (حَ+تْ+تا) [ع] تردې، تردې پورې، تر دې حده، عن چې

**حج**:- (حَ+ج) [ع، اِس، مـذ، وا، ج: حجونـه] (۱) اراده کـول، نيـت کـول، قصـد کول (۲) مکې معظمې ته په يو مقرر وخت په کـال کښې يـو ځـل تلـل او ټاکلي شوي فرض ارکان پوره کول، حج د اسلام پـه پنځـو رکنونو کښې يو رکن دے.

خوشحالَ څهٔ اندوه کړې خوښ په دا اوسه خوښي کړه

چې بــې مالَ غـني ئې نـهٔ دې حـج نـهٔ دې زکـوة خوشحال

ـــــ **اصغر**: اِص. هغه حج چې د حج د خاص ورځو نه بغېر په نورو ورځو کښې کېږي.

ـــــ **اکبر**: اِص. لوے حج، هغه حج په د جمعې په ورځ راشي.

ـــــ **کول**: اِص. حج ته تلل، د حج کولو سعادت حاصلول.

ـــــ **کېدل**: اِص.- حج قبلېدل، د حج د ارکانو پوره کېدل.

**حجاب**:- (حِ+جا+ب) [ع، اِس،مذ ،وا ،ج: حجابونه] (۱) پرده. ستر، ۲. حيا شرم

له حجابه ئې جلوه هسې جمال کا

لکـه سره لمبهٔ چې خېژي له تـنورَ حميد

له حالقَ دې نـهٔ شرم نـهٔ حـجاب شـته

له رحمانَ ګوښه اونيسې حجاب کړې رحمان

ـــــ **اوچتول**: اِص، (۱) پرده اوچتـول، مـخ بربنډول- حجاب لـرې کـول (۲) بې ستره کولَ شرمول.

ـــــ **حجاب اوچتېدل**: اِص .(۱) پـرده اوچتېـدل، مـخ بربنډېـدل- حجاب لـرې کېدل (۲) بې سره کېدل، شرمېدل (۳) بې تکلفي پيدا کېدل.

ـــــ **کول**: اِص .(۱) پرده کول (۲) شرم کول، حيا کول.

ـــــ **لرې کول**: اِص . وـــــ حجاب اُوچتول

ـــــ **نهٔ پاتې کېدل**: اِص .وـــــ حجاب اوچتېدل

**حجاز**:- (حِ+جا+ز) [ع، اِس معرفه]، د سعودي عرب يو ولايت

حمزه سفر که د حجاز وي نو هم

زهٔ بـه پـښتون د قافـلو سره ځم حمزه شينواري

**حجازي**:- (حِ+جا+زي) [ع، اِس ص] .د حجاز اوسېدونکي، ځينې خلق ئې د مجاز سره د تړون په توګه د خپل نوم سره يو ځا ے کوي.

**حجـام**:- (حَ+جـا+مْ) [ع، اِس، مـذ، وا، ج: حجامـان، مـؤ وا، حجامـه، ج: حجامې] نائي، حجامت کوؤنکے.

**حجامـت**:- (حِ+جا+مَ+تْ) [ع، اِس، مـذ، وا، ج: حجامتونـه، حجامتينـه] سـر کلې، سر يا ږيره خرئيل، وېښتهٔ سمول.

د عصمت حجامه راشه د غمازو

که کوې د ږيرو برېـتو حجـامـت بېدل

ـــــ **جوړول**: اِص، حجامت کول، وېښتهٔ جوړول، سرکلول، ږيره خرئيل.

ـــــ **کـول**: اِص .(۱) وـــــ حجامـت جـوړول (۲) د چـا زيـات خـرڅ کـول (۳) څوك شرمنده کول.

ـــــ **کېدل**: اِص . (۱) وېښـتهٔ جوړېـدل، ږيره خرئيلې کېـدل (۲) د چـا زيـات خرڅ کېدل (۳) شرمنده کېدل.

ـــــ **حجامت کېدل**: اِص (۱) وېښـتهٔ جوړېـدل، ږيـره خرئيلـې کېـدل (۲) د چـا زيات خرڅ کېدل (۳) شرمنده کېدل.

**حُجـت** :- (حُ+جْ+جَ+تْ) [ع، س، مـذ، و، ج: حُجتونـه حجتينـه] (۱) دليـل، ثبوت (۲) بحث، تکرر، جګړه (۳) بنه.

هېڅ حاحت له هېچا مه کوه خوشحالَ

هر چې تـاوتـه څـوک وائې تـهٔ هغه کا خوشحال

ـــــ **راوړل**: اِص .(۱) د اختـر د مياشـتې د ليـدلو ليکلـې ثبـوت راوړل (۲) دليل راوړل.

ـــــ **ورکـول**: اِص .(۱) د اختـر د مياشـتې ليکلـې ثبوت ورکـول (۲) دليـل ورکول.

**حُجتـي** :- (حُ+جَ+تـيْ) [پ، اِس، مـذ، وا، ج: حجتيـان] تکـراري، دليـل بـان، بانې ګير.

**حجر**:- (حَ+جَ+رْ) [ع، اِس، مذ ،وا] کاڼے، تيږه، غرمه، چمه، غونډا ے.

نـهٔ ګـوري که وګـوري رټـلي عليخـان تـه

زړهٔ به ئې پرې نرم شي که سخت وي تر هجر عليخان

**حجراسود**:- (حجـر+اَ+سْ+وَ+دْ) [ع، اِس معرفـه، مـذ] هغـه تـور کـاڼے چـې د کعبې شريفې په دېوال کښې لګېدلے دے او د طواف په موقع ئې خلق د تبرك د پاره ښکلوي.

**حُجـره**:- (حُ+جْ+رَهْ) [ع، اِس، مـؤ، وا، ج: حُجـرې] (۱) کوټـه: د جماعـت سـره جخته د ناستې يا پـاتې کېدو کوټـه (۲) چـوك، چونك، دېره د پښـتنو پـه کلو کښې د مېلمنو د پـاتې کېدو ځـا ے، متـل: يا بـه درې شـو يـا بـه د حجرې شو.

ـــــ **په سر اخستل**: اِص، پـه حجره کښـې ډېر شـور کـول او د بـل چـا خبره نهٔ اورېدل.

ـــــ **جماعـت خبـرول**: اِص.ـ خلق خبرول، شـور کـول، ځـا ے بې ځـا ے خبره بيانول.

ـــــ **جماعت کول**، اِص، تعلق ساتل، غم ښادي، ګډول کلې کلويغي کول.

ـــــ **جماعت نهٔ پېژندل**: اِص، ځـا ے نهٔ پېژندل، هر ځا ے غرېدل.

ـــــ **جندره کېدل**: اِصك، د حجرې ورپورې کېدل، حجره شاړېدل، حجره خوشې کېدل.

ـــــ **چلول**: اِص، په حجره کښې مېلمانهٔ عذرول د پښتو د ادابو مطابق حجره اباده ساتل.

ـــــ **ژرنده کېدل**: اِص په حجره کښې د مېلمنو خيال نهٔ ساتلے کېدل.

ـــــ **شرمول**: اص (۱) بې پښتو کارکول د ترلي دستور نه اخوا ډېرخوا کار کول (۲) د حجرې د عزت خيال نۀ ساتل (۳) د مېلمه مېلمستيا نۀ کول

ـــــ **شرمېدل**: اص (۱) د پښتو نه خلاف کار کېدل، (۲) د حجرې د عزت خيال نۀ ساتلے کېدل .

ـــــ **ګرمول**: اص: (۱) په حجره کښې اور بلول (۲) ښۀ تود ګپ لګول (۳) تېنګ ټکور جوړول .

ـــــ **ګرمېدل**: اص: ـ(۱) په حجره کښې اور بلېدل (۲) ښه تود ګپ لګېدل (۳) تېنګ ټکور جوړېدل .

ـــــ **ورانېدل**: اص ـ(۱) حجره راپرېوتل (۲) حجره شاړېدل (۳) دحجرې شرم مړکېدل

**په حجره کښې خرۀ ځرېدل**: اص : حجره شاړېدل، حجره حجره نۀ پاتې کېدل، د حجرې نه د ښېلندي غولے جوړېدل .

**په حجره ورختل**: اص:ـ په ډکه حجره حمله کول- د حجرې نه د ښېلندي غولے جوړېدل اص- وـــــ په حجره کښې خرۀ ځرېدل

**حُجم**:- (حُ+جَ+م) [ع، اس، مذ] غټوالے، ضخامت، په لوښي کښې د څۀ مائع د ځائېدلو ګنجائش.

**حد**:- (حَ+د) [ع، اس، مذ، وا، ج: حدُونه] (۱) پُوله، برید، غاړه، څنډه، سرحد (۲) انتها (۳) د روانېدو ځاے (۴) زيات ډېر (۵) شرعي سزا .

ـــــ **پرې کول**: اص ـ يو کار په ښۀ شان کول

ـــــ **پرې لګول**: اص- په چا ملزم د شريعت مطابق سزا ورکولو حکم کول

ـــــ **په هورته**: اص ـ ډېر زيات، د اندازې نه بهر .

دانا او د نادان تر ميان يـو حـد وي
هوښياري د حد په هورته حماقت وي رحمن

ـــــ **پېژندل**: اص، خپله پُوله پېژندل، د بريد نه نۀ وتل د ټاکلو اصولو پابند پاتې کېدل .

پروانه غونډې خولۀ پته خپل سر سبځي
کـه څوک پـېژني د عـشق حد و حـدود حميد

ـــــ **ته رسول**: اص، (۱) ځاے ته رسول، يو کار په غوره طريقه سر تـه رسول (۲) پولې ، بريد يا سرحد ته رسول (۳) انتها ته رسَول .

ـــــ **حساب نۀ لرل**: اص ـ بې حسابه او بې اندازې ، بې پاياوه .

ـــــ **خېژول**: اص، په چا باندې د حد حکم صادرول .

ـــــ **ټاکښل**: اص، پوله بريد جوړول، حد مقررول، بريد پوله ټاکل، اندازه مقررول په نخښه کول .

ـــــ **کول**: اص، (۱) پوره زور لګول (۲) کمال ته رسول .

ـــــ **لګول**: اص، د شريعت مطابق چا ته انتهائي سزا ورکول .

ـــــ **مقررول**: اص ـ و ـــــ حد راکښل .

**بې حده**: اص، بې اندازې، ډېر زيات، د حده هورته، د حده زيات، د حد نه هغه خوا، د حده وتے .

د شېرين دلبر د لاسه ماشراب د حد بې قياسه
څو بې حده مې ډېر و څښل فرزانه يم لاتراوسه دولت لواڼے

**د حد نه بهر وتل**: اص ، (۱) د اندازې نه زياتېدل (۲) د کرښې نه بهر کېدل ، په لوبه کښې سوځېدل (۳) بې ادبي يا ګستاخي کول (۴) باغي کېدل

**د حد نه په هغه خوا**: اص، و ـــــ بې حده

**د حد نه نۀ وتل**: اص، (۱) د کرښې نه نۀ باهر کېدل (۲) په ادب کښې دننه پاتې کېدل.

**د حد نه وتل**: اص ـ(۱) د حد نه بهر کېدل (۲) زياتېدل، بې حسابه کېدل (۳) بې ادبه کېدل، ګستاخ کېدل .

**د حده زيات**: اص، و ـــــ بې حده .

**حدبندي**: (حد+بَ+نْ+دي) [فا، اس، مؤ، وا، ج: حد بندۍ] ټاکلې پوله او بريد

ـــــ **کول**: اص، پُوله او بريد مقرره ول، يوه رقبه په دوه ځايه وېشل.

**حدبراري**: (حد+ب+را+ري) [فا، اس، مؤ، وا، ج، حد براری] د حد معلومول

ـــــ **کول**: اص، د سرکاري نقشې مطابق د پولې کرښه راکښل .

**حد حدود**: (حد+ح+دو+د) [ع، ص] بريد، پوله، کرښه.

په خپل حد حدود کښې هر سړے سلطان دے
تـر خپـل ځـان چاپېرېـه څېر د پـرکار ګرځـه فاضل

**حديث**:- (ح+دي+ث)[ع، اس، مذ، وا، ج: حديثونه، حديثينه] (۱) خبره، بيان (۲) د رسول کريم ﷺ اقوال .

د نېکو همراهان دي يو قرآن دويم حديث عليخان

**حديث بيانول**: اص، د رسول کريم ﷺ قول اورول

ـــــ **راکښل**: اص ـ(۱) پخه وعده ترې اخستل په چا ډېره سپارښتنه کول (۲) توبې پر ويستل .

ـــــ **راوړل**: اص ـ د سند په توګه حديث بيانول .

ـــــ **کول**: اص، خبره کول، وېنا کول .

که څوک وائي چې چا کړے دا حديث دے
رحـمـن وائـي چـې زمـا دے دا حـديـث رحمن

ـــــ **لوښول**: اص، د حديث درس ورکول، په پېزه حديث راځکول: اص پوزه په زمکه راکښل، د يو کار د نۀ کولو قسم خوړل .

**حذر**:- (حَ+ذَ+ر) [ع، اس، مذ] پرهېز، ځان ساتنه، وېره .

پښتنو څخه که شته څۀ عقل پوهه
اېل ياغي دي ځنې کاندې ترې حذر خوشحال

**حُر** :- (حُ+ر) [ع، اس، مذ] (۱) ازاد (۲) په سيند کښې د مجاهدينو يو ټولے

**حرارت**:- (حَ+را+رَ+ت) [ع، اس، مذ ،وا] (۱) تاؤ، ګرمي (۲) تبه (۳) غصه، قهر.

**حراست**:- (ح+را+سَ+ت) [ع، اس، مذ] نګراني، حوالات، بنديواني

**حرام** :- (حَ+را+م) [ع، اس، مذ] ناروا، نا پاك، ناجائز، په شرع کښې منع

فراغت آرام به ئې دواړه شي حرام
چې په مينه کښې لېچن وي لکه زۀ عليخان

ـــــ **پيدا کول**: اص، په ناجائزه طريقه مال لاس ته کول، بډې او رشوت خوړل .

ـــــ **حلال نۀ ګڼل**: اص- جائز او ناجائز او روا ناروا ته نۀ کتل

ـــــ **خوړل**: اص- حرام خوري کول، ناجائز مال خوړل، بډې رشوت قبلول

ـــــ **کول**: اص ـ(۱) بډې خوړل، ناجائز مال خوړل، (۲) تنګول

ـــــ **کېدل**: اص ـ(۱) ناجائز کېدل، (۲) بندېدل (۳) تنګېدل

مشر ورور دې په زندان کړ تۀ خاني کړې
د اخـا نـې دې شـه پـه ځـان پـورې حرامَ خوشحال

ـــــ **ورکول**: اص ـ بډې رشوت ورکول

ـــــ **په ځان حرامول**: اص:ـ په ځان ناروا کول، په لاس بندول، څۀ څيز په خاص وجه نۀ خوړل، څۀ کار د قسم په ډول نۀ کول

**حرامتوب**:- (حَ+را+مْ+تو+ب) [پ، اس، مذ] حرامتوبي، حرامتيا، حراموالے، بد معاشي، وران کاري، شيطاني

**حرامتوبي**:- (حرام+تو+بيْ) [پ، اس، مؤ] و ـــــ حرامتوب

**حرامتيا**:- (حرام+تْ+يا) [پ، اس، مؤ] و ـــــ حرامتوب

**حرام خور**:- (حرام+خو+رْ) [فا، اس ص، مذ، وا، ج: حرام خواران مؤ، وا: حرام خوره، ج: حرام خورې] (۱) بډې خور، رشوتي (۲) بې وفا، بې اتباره .

مقتدي که حرام خور وائي امام ته
امام لاوائي فلانے محلت کفار شۀ علیخان

**حرام خوري**:- (حرام+خو+رِيْ) [فا، اس،مؤ] (۱) بدې خوري، رشوت خوري، نا جائز مال خوړل (۲) بې وفائي، بې اتباري، بد ذاتي، نیك حرامي

ـــــ **کول** اِص .(۱) بدې او رشوت خوړل، پردے مال په بده کول (۲) بې وفائي او بې اتباري کول ، نمك حرامي کول

**حرام زاده**:- (حرام+زا+ده) [فا ، اس ص، مذ ، وا ، ج: حرام زادګان مؤ، وا: حرام زادګیه، حرام زادګی، ج: حرام زادګاني، حرام زادګنې] (۱) حرامي، ثوك چې بې د نکاح نه پیدا شوے وي، د غلا د نطفې نه پیدا شوې (۲) شیطان، چالاك، بدمعاش، وران، فسادي، په حرامو پاللے شوے.

**حرام مغز**:- (حرام+مَ+غ+ز) [فا، اس، مذ] د ملا د تیر مغز چې خوراك ئې جائز نۀ دے

**حراموالے**:- (حرام+وا+لَے) [پ، اس، مذ] و ـــــ حرامتوب

**حرامُونے**:- (حَ+را+مُـو+نے) [پ، اس ص، مذ ، وا ، ج: حرامُنـي، مؤ، وا ، ج: حرامونې] وران کارے او شیطان هلك، سرګوزے.

**حرامي**:- (حَ+را+مي) [پ، اس ص، مذ ، وا ، ج: حرامیان مؤ، وا: حرامیه، ج: حرامیې] (۱) د غلا د نطفې نه پیدا ، بې نکاحه پیدا (۲) شیطان، غل، بدمعاش، بدذات وران کارے.

**حربه**:- (حَ+رْ+به) [ع، اِس، مؤ، وا ، ج: حربې] (۱) د جنګ وسله (۲۹ چل، تدبیر

**حرج**:- (حَ+رَ+ج) [ع، اس، مـذ] (۱) نقصـان، ضـرر، (۲) څنـډ ، ډيـري (۳) تنګي، سختي (۴) بدي، بدیات، مضائقه

**حرص** :- (حِ+رَ+ص) [ع، اِس، مذ ، وا] ج: حرصونه (۱) طمع، لالچ (۲) هوا، خواهش، (۳) غرض

ـــــ **په مخه کول**: اِص .ـ حرص اخستل، طمع او لالچ پسې هڅه کول- غرض په مخه کول

ـــــ **کول**: اِص .ـ (۱) طمع کول، لالچ کول، (۲) هوا خواهش ظاهرول

ـــــ **د حرص بنده کېدل**: اِص . ډېره خود غرضي ښکاره کول، په طمع او لالچ پسې بدې راکښل

**حرصمن**:- (حـرص+مَ+ن) [پ، اس ص، مـذ ، وا ، ج، مـؤ وا : حرصـمنه، ج: حرصمنې] حرصناك، حرصي، غرضي، لالچي، طمع ناك، وږ سترګے، اروا وږے، حریص، نۀ مړېدونکے

**حرصناك**:- (حرص+نا+ك) [پ، اس ص، مـذ ، وا+ج، مـؤ وا : حرصـناکه، ج: حرصناکې] و ـــــ حرصمن

**حرصي** :- (ح+ر+صي) [پ+اِس ص، مذ، وا ، ج: حرصیان ، و ـــــ حرصمن

**حرف**:- (ح+ر+ف) [ع، اِس، مـد ، وا ، ج: حرفونه حرفینه] (۱) توري، ټکي، د اواز ظاهرولو نخښه (۲) خبره (۳) نقص، عیب .

ـــــ **بدلول**: اِص . خبرې کول

ما له حرف نۀ وو له یاره بـدل کـړے
د سحر خروس دے وویشت شي په کومي خوشحال

ـــــ **په حرف**: اِص . ټکي په ټکي، لفظ په لفظ، ښخي هم هغه شان مکمل، ټول، ګرد

ـــــ **حرف راتلل**: . اِص ، بدنامي کېدل، اعتراض پیدا کېدل

ـــــ **نۀ ویستل**: . اِص .(۱) په خولۀ هېڅ نۀ وئیل، غږ نۀ کول، ښخي خاموشه پاتې کېدل، غلے کېدل (۲) ویرېدل

**حرفت**:- (ح+ر+ف+ت) [ع، اس، مذ ،وا] کسب، پیشه، فن، هنر

**حرکت**:- (ح+ر+ك+ت) [ع، اس، مذ ، وا ، ج: حرکتونه حرکتینه] (۱) زور، زېر، پېش (۲) تګ، چال، خوزېدل، ښورېدنه (۳) کار، فعل

ـــــ **کول** ، اِص (۱) خوزېدل، ښورېدل، تلل روانېدل، (۲) حمله کول (۳) وراني کول

زړۀ کښې ئې کرکه وي په شونډو سلامونه کوي
د عـقل فـکر نـه لـرې ډېـر حـرکـتـونـه کـوي (شمس)

ـــــ **نۀ کول**: . اِص .(۱) د ځایه نۀ خوزېدل، شول کېدل، (۲) یرېدل، ډارېدل

**حرم**:- (ح+ر+م) [ع، اس، مـذ ، وا ، ج: حرمونه] (۱) پـاك (۲) منـع (۳) د خانـه کعبې د چـار دیـوارۍ او د مسـجد نبـوي ﷺ دننـه علاقـه (۴) کـور (۵) ښځه، ټبر

مدام ناست یم وچ ګوګل سترګې په نم کښې
عشق راوښود بـحر و بـر پـه خپل حرم کښې رحمن

**حُرمت**:- (حُ+ر+م+ت) [ع، اِس مذ] (۱) عزت، ادب، لـوئي (۲) حراموالے، په شرع حرام (۳) بې مناسب، ناروا

لکه نۀ کا کشران حرمت د مشر
مشر لاله شفقته دست بردار شۀ علیخان

**حَرمین**:- (حَ+ر+مي+ن) [ع، اِس، مـذ ، ج، وا: حرم] (دوه حرمونـه یعني مکه معظمه او مدینه منوره)

**حروف تهجي**:- (حُ+رُو+ف+ت+ح+ج+جي) [ع، اِس، ج]د یـوې ژبې د الف بې د پټې توري

**حُرِیّت**:- (حُ+رْ+ري+ي+تْ) [ع، اِس، مذ]

د بلاربې غلامۍ ځنې زبېرې حریت حمزه شینواري

**حریص**:- (ح+ري+ص) [ع، اِس، مـذ ، وا ، ج: حریصـان مـؤ، وا: حریصـه، ج: حریصې] و ـــــ حرصمن

و حریص وته درست مال ددنیا لږ دے
و قانـع تـه یـو فـلوس ددنیا مال بس خوشحال

**حریف**:- (ح+ري+ف) [ع، اس، مذ ، وا ، ج: حریفان مؤ، وا: حریفه، ج: حریفې] برابر، سیال، په یو شان (۲)دښمن، مخالف (۳) دیو کسب یا فن ملګري

نـورو حریـفانو واړه ډکې پـیالې نـوش کړې
ښۀ چې د خوشحال پیاله ئې ډکه په بکس کړه خوشحال

ـــــ **جوړېدل**: اِص،دښمن کېدل، مقابلې ته تیارېدل، بر خلاف کېدل،

ـــــ **ګڼل**: اِص،دښمن ګڼل، مخالف شمارل

**حریفي**:- (ح+ري+في) [پ تر، اس ص، مؤ]دښمني ، مخالفت

**حزب**:- (ح+زْ+بْ) [ع، اس، مـذ ، وا ، ج: حزبونـه] ټـولے، ټـولګے، ګونـدي، پارټي.

**حزب اختلاف**:- (حزب+ا+خ+ت+لا+فْ) [ع، اس ص]حزب مخالف، په اسمبلۍ کښې مخالفه ډله

**حزب اقتدار**:- (حزب+ا+ق+ت+دا+ر) [ع، اس ص] حکومتي ډله، هغه ډله چې په لاس کښې ئې د حکومت واګې وي

**حزب الله**:- (ح+ز+ب+ل+لا+ه) [ع، اس ص، مـذ ](۱) د ښکـو خلقـو ټـولے (۲) د مسلمانانو یو عام نُوم.

**حزب مخالف**:- (حزب+مُ+خا+ل+فْ) [ع، اس ص) ، و ـــــ حزب اختلاف .

**حِس**:- (ح+س) [ع، اس، مـذ ، وا ، ج: حِسـونه] (۱) ادراك، د احسـاس قـوت (۲) حرکت (۳) ښکالو ، د پښو پړك.

**بې حسه کول.**: اص، (۱) بې هوشه کول (۲) پرول، ډارول

**بې حسه کېدل**: - اص، (۱) بې هوشه کېدل (۲) پرېدل، ديرې نه غلې کېدل (۳) نا راسته کېدل، بدن سستېدل.

**حساب**:- (ح+سا+ب) [ع، اس، مذ، وا، ج: حسابونه] (۱) شمار (۲) اندازه، واقعه (۳) د رياضۍ علم (۴) پوهه، فکر (۵) قاعده، طريقه (۶) نرخ (۷) نغدي، پيسې، مال.

نن خو عليخان غريب په مړو کښې حساب دے
کـله انصاف دارو شوک پـه مړۀ کا اعـتـراض عليخان

هم حيوان ئې هم سړے ئې هم ملک ئې
کـه تـۀ بۀ پـه ځان خبر شې له حسابَ خوشحال

**ـــــ اخستل**: اص .(۱) پيسې اخستل (۲) تپوس کول، حساب معلومول، حساب ګوښتل، حساب کتاب کول (۳) د چا محاسبه کول.

**ـــــ برابرول**: ، اص .(۱) پيسې يو ځاے کول، پيسې ګونډول (۲) لېنې دېنې صفا کول (۳) فېصله کول، حساب جوړول.

**حساب پرې کول**، اص .(۱) پيسې ادا کول، پور واپس کول (۲) حساب صفا کول، حساب غوڅول.

**ـــــ ته نۀ کتل**، اص. پيسو ته پام نۀ کول، بې خرته دولت لګول

**ـــــ جنګول**: ، اص . په زړۀ کښې حساب لګول، د خرڅ د امدن فکر کول، اندازه لګول

**ـــــ جوړول**: ، اص. و ـــــ حساب برابرول

**ـــــ خلاصول**: ، اص .و ـــــ حساب صفا کول

**ـــــ خوړل**: ، اص. بډې خوړل، رشوت اخستل

**ـــــ صفا کول**: اص، حساب بې باکه کول، پور پرې کول- لېنې دېنې تر سره کول، حساب خلاصول.

چې صبا د هغه کار په حساب نيۀ شې
صاف کړه نـن د ځان سره هغه حساب حميد

**ـــــ غوڅول**: اص. و ـــــ حساب پرې کول

**ـــــ غوښتل**: اص. و ـــــ حساب اخستل

**ـــــ کول**: اص. (۱) شمار کول، شمارل (۲) لېنې دېنې يا د تجارت ګټه نقصان برابرول (۳) د رياضۍ سوال حل کول

**ـــــ کېدل**: اص. (۱) شمار کېدل (۲) تجارت د ګټې ببلات، حساب کېدل

**ـــــ لرل**: اص، دولت لرل، په جېب کښې پيسې لرل.

**ـــــ لګول**: اص. (۱) اندازه لګول، د امدن او خرڅ تخمينه لګول (۲) خرڅ کول

**ـــــ نۀ کول**: اص .بې حسابه پيسې لګول، د چا پاره بې حسابه بې کتابه دولت خرڅ کول.

**ـــــ حساب ورکول**: اص .(۱) د ګټې نقصان تفصيل ورکول (۲) پيسې ورکول (۳) بډې رشوت ورکول.

**په حساب**: اص. په شمار، په قطار

که صورت مې د سړي دے زۀ ئې څۀ کړم
پـه معـنى کښې د چوپـايو پـه حساب يم رحمن

**په حساب کښې تېرو بېر کول**: اص، په حساب کښې چل ول کول، د پيسو په معامله کښې ټګي تورې کول.

**په حساب کول**: اص، شمارل، حسابول

**حساب کتاب**:- (حساب+ک+تا+ب) [اپ، اس، مذ، وا، ج: حسابونه کتابونه] (۱) لېنې دېنې، ګټه نقصان (۲) د قيامت د ورځې د نيکۍ او بدۍ حساب کتاب

**ـــــ صفا کول**: اص. د پيسو لېنې دېنې غوڅول.

**ـــــ صفا کېدل**: اص. د پيسو لېنې دېنې غوڅېدل يا صفا کېدل.

**ـــــ کول**: اص. د ګټې نقصان حساب برابرول، د لېنې دېنې حساب کول.

**ـــــ ورکول**: اص (۱) د ګټې نقصان تفصيل بيانول (۲) سوال ځواب ورکول

عـاشـقـۍ پــه عـرصـات يم اودورولے
ورکومه هر ساعت حساب کتاب سخت حميد

**په ـــــ کښې تېر او بېر کېدل**: اص

**په ـــــ کښې تېر ايستل**: اص، په حساب کتاب کښې دوکه کول

**په ـــــ کښې تېروتل**: اص، و ـــــ په حساب کتاب کښې تېر او بېر کېدل.

**د ـــــ ورځ**: اص، د قيامت ورځ

**حسابول**:- (ح+سا+ب+و+ل) [اپ، مص مت] شمارل، ګڼل، حساب کول، يادول

تـمـام عـمـر د دنـيـا پــه طلب ګـرځې
بيا د خداے په طالبانو ځان حساب کړې رحمن

**حسابونه**:- (ح+سا+ب+و+نه) [اپ، حمص] شمارنه، ګڼنه، حساب کونه

**حسابوُونکے**:- (ح+سا+ب+وُو+ن+کے) [اپ، فاع، مذ، وا، ج: حسابوونکي مؤ: حسابوُونکې] شماروُنکے، ګڼونکے، حساب کووُنکے.

**حسابېدل**:- (ح+سا+بې+د+ل) [اپ، مص لا] شمارېدل، ګڼلے کېدل، حساب کېدل

**حسابېدنه**:- (ح+سا+بې+د+نه) [اپ، حمص] حسابېدۀ، شمارېدنه، ګڼلے کېدنه حساب کېدنه.

**حسابېدوُنکے**:- (ح+سا+بې+دو+ن+کې) [اپ، مف، مذ، وا، ج: حسابېدوُنکي مؤ: حسابېدوُنکې] شمارېدوُنکے، ګڼلے کېدوُنکے، حساب کېدوُنکے.

**حسابېدۀ**:- (ح+سا+بې+دۀ) [اپ، حمص] و ـــــ حسابېدنه

**حَسب**:- (ح+س+ب) [ع، اس، مذ، وا، ج: حسبوُنه] نسب، شجره، د خاندان سلسله

**ـــــ نسب**: اص. د مور پلار خانداني شجره

**حسد**:- (ح+س+د) [ع، اس، مذ] بغض، کينه، تورنيتي

يو مې ستا جور و جفا وژني دلبره
دويـم مـرم د رقـيـبـانـو لـه حسدَ نجيب

**ـــــ ساتل**: اص، حسد کول، تورنيتي کول، په زړۀ کښې بغض ساتل، د چا په بنو خفه کېدل.

**ـــــ کول**: اص. و ـــــ حسد ساتل

**ـــــ حسد کېدل**: اص .د چا سره بغض پېدا کېدل، د چا خلاف کينه په زړۀ کښې پيدا کېدل

**حسرت**:- (ح+س+ر+ت) [ع، اس، مذ، وا، ج: حسرتونه] (۱) افسوس، ارمان (۲) شوق، خواهش، زړۀ غوښتنه (۳) د اردو ژبې مشهور شاعر حسرت موهاني تخلص.

تصور د يار مې نشته نن د خوږ زړۀ په وطن کښې
يا تـيارۀ ده شـمع نـشته د حسرت په انجمن کښې حمزه

**ـــــ کول**: اص (۱) افسوس کول، ارمان کول، لاس مښل (۲) خواهش کول، شوق کول.

**ـــــ کېدل**: اص. (۱) افسوس کېدل، ارمان کېدل لاس مښلے کېدل، (۲) خواهش کېدل، شوق کېدل.

**حَسن**:- (حَ+س+َن) [ع، اس، مذ] (۱) نېک، ښۀ (۲) ښکلے (۳) حضرت امام حسن رضي الله عنه د حضرت علي کرم الله وجهه زوے او د رسول پاک صلى الله عليه وسلم نمسے (۴) د مسلمانانو يو عام نوم.

**حُسن**:- (حُ+س+َنْ) [ع، ص، مذ] ښکلا، ښائست

هومره حُسن ئې په تن باندې انبار دے
چې باريکه شوه د يار په دغه بار ملا علیخان

**حسن بصري**:- (حَسن+ب+ص+ري) [ع، اِس معرفه، مذ]يو لوے ولي الله چې په بصره کښې ئې روضه ده.

**حَسن بن صباح**:- (حسن+ب+ن+ص+با+ح) [ع، اِس معرفه]يو مشهور ملحد ثوک چې د عمر خيام او نظام الملك طوسي سبقي ؤ يو فرضي جنت ئې جوړ کړے ؤاو ډېر لوے لوے مسلمانان د هغه د مريدانو د لاسه شهيدان شوي دي دې د اسمٰعيليه فرقې باني ؤ.

**حَسـن حُسېن**:- (حَسن+ح+سي+ن) [ع، اس معرفه، مذ] (۱) حضرت امام حسن او حضرت امام حسېن رضي الله عنهما (۲) د امامانو يا د محرم مياشت

**ـــــ ژړل**: اِص.(۱) د عاشورې په ورځو کښې ماتم کول (۲) ډېر منت زاري کول.

**حَسنه**:- (ح+س+نه) [ع، ص](۱) نېکي، ښۀ والے، ښېګړه (۲) خوبي.

**حَسني**:- (ح+س+ني) [ع، اِص ص] د حضرت امام حسن رضي الله عنه د اولاد نه

**حسـين**:- (ح+سي+ن) [ع، ص، مذ، وا، ج: حسينان، مؤ، وا: حسينه، ج: حسينې] ښکلے، ښائسته، ډولے، پې مخے.

**حُسېن**:- (حُ+سي+ن) [ع، اِس معرفه، مذ]د حضرت امام حسېن رضي الله عنه نوم ثوک چې په لسم محرم ۶۱هـ د کربلا په مېدان کښې د يزيد د لښکر د لاسه شهيد شوے ؤ.

پل د حُسېن باندې چې ځې هسې ځوانان پيدا کړې
چې د اسلام د سرلوړي ودانې اوپېژنو
پرېشان

**حُسيني**:- (ح+سي+ني) [ع، اِص ص](۱) د حضرت امام حسين رضي الله تعالى عنه اولاد (۲) په موسيقۍ کښې د يو مقام نوم (۳) يو قسم انګور.

**حشر**:- (ح+ش+ر) [ع، اس، مذ] د قيامت ورځ، د جزا او د سزا ورځ.

قيامت حشر ځنکدن عذاب د قبر
کنايت دي له مفهومه د فراق علیخان

**ـــــ نشر**: اِص.(۱) د قيامت ورځ (۲) شور او غوغا، ګنه ګونه.

طمع مې ولاړ کا بيا مې زر هجر لتاړ کا
ورځ د حشر نشر که صبا وه په ما نن شوه

**حشـرات**:- (ح+ش+را+ت) [ع، اِس، مذ، ج، وا: حشره] (۱) د حشره جمع (۲) ورکوټي ورکوټي چينجي.

**حشرګاه**:- (حشر+ګا+ه) [فا، اس، مذ، وا] د قيامت مېدان.

**په حشرګاه شرمېدل**: اِص.زيات شرمېدل، بې کچه ډېر بې عزته کېدل.

**حشمت**:- (ح+ش+م+ت) [ع، اس، مذ]د بدبه، لوئي، شان.

خدايه ګنج د قناعت و رحمن ورکړې
چې بې ملکه بې حشمته دولتمن وي رحمن

**حشيش**:- (ح+شي+ش) [ع، اِس، مذ] (۱) وُچ واښه (۲) بنګ (۳) چرس.

**حصـار**:- (ح+صا+ر) [ع، اِس، مذ، وا، ج: حصارونه] (۱) قلعه، کوټ، چارديواري، (۲) بند، راګېر (۳) په هندوستان کښې د يو ښهر نوم.

**ـــــ راګښل**: اِص.د طشت تعويز کولو په وخت د عامل چار چاپېره کرښه راکښل

**ـــــ ماتول**: اِص.په قلا ورختل، په قلعه بند فوځ بريالے کېدل.

**حصـه**:- (ح+صه) [ع، اِس، مؤ، وا، ج: حصې](۱) برخه، ونډه (۲) قسمت، نصيب (۳) ټکړه، ټوټه (۴) تقسيم، وېش (۵) علاقه.

که دې خوند د ګناه واخست ورپسې به ګناه کاندې
دا حصه د مېړنو ده د ضمير په ماتېدو شي (حمزه)

**ـــــ اخستل**: اِص.(۱) په څۀ کار کښې شاملېدل (۲) خپله برخه اخستل

**ـــــ بېلول**: اِص.برخه جدا کول، وېش کول

**ـــــ زباډول**: اِص.خپله برخه په چا منل

**ـــــ کول**: اِص.برخه کول، چا ته برخه ورکول

**ـــــ ورکول**: اِص.برخه ورکول

**بې حصې**: اِص، بې برخې

**حصې حصې کول**: اِص، ټوټې ټوټې کول، برخې برخې وېشل

**حصې حصې کېدل**: اِص، ټوټې ټوټې کېدل، برخې برخې کېدل

**د حصې نه ويستل**: اِص، بې برخې کول، چاته خپل حق نۀ ورکول

**حصه دار**:- (حصه+دا+ر) [فا، اِس، مذ، وا، ج: حصه داران مؤ، وا، حصه داره: ج: حصه دارې] برخه دار، برخه خور، شريك، ملګرے، بائيوال، اندېوال

**ـــــ کول**: اِص.ثوک په څۀ کار کښې د ځان سره ګډول- په برخه کښې شريك کول.

**ـــــ کېدل**: اِص، د چا سره په څۀ کار کښې ګډېدل، په برخه کښې شريك کېدل

**حصه داري**:- (حصه+دا+ري) [ج: حصه دارئ]بائيوالي، شراکت، اندېوالي.

**حضـرت**:- (ح+ض+ر+ت) [ع، اِس ص، مذ، وا، ج: حضرتان] (۱) نږدې والے (۲) جناب، حضور (۳) د رسول کريم صلى الله عليه وسلم لقب.

په هغه څيز مينه بويه عليخانَ
چې پرې کړې وه حضرت پېغمبر مينه علیخان

**حُضور**:- (ح+ضو+ر) [ع، اِس ص، مذ] (۱) حاضري، موجودګي (۲) جناب، حضرت (۳) دربار، مجلس (۴) مخامخ، وړاندې (۵) في الحال.

يا بلادبېلتانۀ په هورته نشته
يا خو دا اند ښېنه پېښه د حضور علیخان

**په حضور کښې**: اِص.په خدمت کښې، په دربار کښې، مخامخ په وړاندې

**جي حضور**: اِص.خو شامنده، چاپلوسي

**راحضور کېدل**: اِص.راپېښېدل، رارسېدل

**حظ**:- (ح+ظ) [ع، اس، مذ]خوند، مزه، لُطف

معزالله په دنيا زړۀ ښۀ کول نشته
په پردۍ خونه کښې څۀ کا مهمان حظ معزالله

**ـــــ اخستل**: اِص، خوند اخستل، مزه اخستل

**حفاظت**:- (ح+فا+ظ+ت) [ع، اِس، مذ، وا، ج: حفاظتونه] ژغورنه، ژغورن، ساتنه، څارنه، نګهباني

دغه جذبه زړۀ د ژوندون په حرکت کښې لري
دا حرکت دې چې ژوندون په حفاظت کښې لري حمزه

**ـــــ کول**: اِص.بارل، ژغورل، ساتنه کول، نګهباني کول

**ـــــ کېدل**: اِص.څارلے کېدل، ژغورلے کېدل، ساتنه کېدل، نګهباني کېدل

**په حفاظت**: اِص.په امان، ژغورلے، محفوظ، حفاظت سره.

**حِفظ** :- (ح+ف+ظ) [ع، اس، مذ] (۱) حفاظت، خبرداري (۲) په يادو، زباني

**ـــــ کول**: اِص.قرآن شريف په يادو کول

**ـــــ کېدل**: اِص. قرآن شريف په يادو کېدل

**حفيظ**:- (ح+في+ظ) [ع، اِس، مذ](۱) ساتندويه، محافظ، نګهبان (۲) د الله پاك يو صفتي نوم (۳) د مسلمانانو نُوم (۴) د اردو ژبې د يو اوچت شاعر

حفیظ جالندهري تخلص.

**حق:**- (ح+ق) [ع، اس، مذ، وا، ج: حقونه] (۱) د خدا ے پاك صفتي نوم، حق تعالي (۲) ربنتیا، سم (۳) انصاف، درست (۴) برخه، حصه (۵) مزدوري، دکار صله (۶) فرض، ذمه واري (۷) جائز (۸) انعام

چې و حق ته رهبران دي
یو قران دویم حدیث — علي خان

حق به هم وي خو زور حق د ے
چې زور نۀ لري ساز غل شي — عبدالاکبر خان اکبر

**ـــــ اخستل:** اص.(۱) خپله حصه یا برخه حاصلول (۲) انصاف حاصلول

**ـــــ ایسارول:** اص.د چا مزدوري، برخه، یا حصه نۀ ورکول

**ـــــ پټول:** اص .(۱) ربنتیا نۀ څرګندول، دروغ وئیل، اصلي مسئله نۀ ښکاره کول (۲) بې ایماني کول.

**ـــــ ته حق نۀ وئیل:** اص، ربنتیا نۀ وئیل، د چا حق نۀ حسابول- سمه د لاړې خبره نۀ کول.

**ـــــ زبادول:** اص.خپل حق په چا منل .

**ـــــ غوښتل:** اص.(۱) انصاف طلب کول (۲) خپله حصه یا مزدوري غوښتل.

**ـــــ کول:** اص.انصاف کول .

**ـــــ نا حق:** اص.(۱) جائز نا جائز، روا ناروا (۲) خامخا، ارومرو .

**ـــــ ورکول:** اص.(۱) خپله حصه ورکول (۲) ګټلې مزدوري پرې کول

**ـــــ وئیل:** اص.ربنتیا خبره کول

**ـــــ برنا حق:** اص.بې ګناه، بې قصوره، هېڅ بې هېڅه.

**ـــــ حقه خبره:** اص .حقه وینا، ربنتیا خبره، سپینه قصه.

**حقارت:**- (ح+قا+ر+ت) [ع، اس، مذ] بې عزتي، سپکا و ے، ذلت .

چې په ما به ئې نظر په حقارت کړ
هغو وارو پـه هنر کښې وپسندلم — خوشحال

**حق بین:**- (حق+بې+ن) [فا، اس ص، مذ، وا، ج: حق بینان مؤ، وا: حق بینه، ج: حق بینې]حق لیدونکے، منصف، انصاف دار.

**حق پرست:**- (حق+پ+ر+س+ت) [فا، اس ص، مذ، وا، ج، حق پرستان مؤ، وا: حق پرسته، ج: حق پرستې] (۱) ربنتونے، منصف، حق خوښوونکے، (۲) د خدا ے پاك منونکے، عبادت کوونکے.

**حق تعالي:**- (حق+ت+عا+لا) [ع، اس ص، مذ] الله پاك

**حق تلفي:**- (حق+ت+ل+في) [ع، اس، مؤ] بې انصافي، حق وهل

**حق حېران:**- (حق+حې+ران) [پ+ص+مذ]اریان دریان، حېران پریشان.

حق حېران د رب په کړۀ کښې
هېڅ پـرې نـۀ پـوهېږم زۀ — علیخان

**حق دار:**- (حق+دا+ر) [فا، اس ص، مذ، وا، ج: حق داران مؤ، وا: حق داره، ج: حق دارې] (۱) حق لرونکے، حصه دار (۲) د بدلې یا انعام وړ.

نو هېڅ په حق د حقدارانو نۀ ګروهېږې
هـمېشه زمـا زړۀ پــه وړو مـنکـر ئي — رحمن

**حق داري:**- (حق+دا+ري) [پ، اس، مؤ] د حصې یا برخې حق،

**حق شُفعه:**-(حق+ش+ف+ع) [ع، اس، مؤ] د ګوانډ حق، د ملحق جائداد د اخستلو حق

**حق شناس:**- (حق+ش+نا+س) [فا، اس ص، مذ، وا، ج: حق شناسان، مؤ، وا، حق شناسه ج: حق شناسې](۱) حق پېژندونکے (۲) قدردان.

**حُقه:**- (ح+ق+ه) [ع، اس، مؤ، وا، ج: حُقې] چیلم.

**ـــــ پانې:** اص.اوبۀ چیلم، تعلق، کلې کلوبغې.

**ـــــ پانې بندول:** اص .اوبۀ چیلم بندول، تعلقات پرې کول- کلې کلوبغې نۀ کول

**حقیر:**- (ح+قي+ر) [سپك، بې قدره، بې قیمته، معمولي.

نۀ د چا پرې څۀ پوره دي نۀ نیمګړي
ښـلـتانـۀ هسې حـقیر کړ زما زړۀ — علیخان

**حقیقت :**- (ح+قي+ق+ت) [ع، اس، مذ، وا، ج: حقیقتونه] (۱) اصلیت، حال، کېفیت (۲) جوړه، بنیاد (۳) ربنتیا، صداقت (۴) حېثیت، وس .

په جهان کښې څلور قسمه د ے نعمت
عاقـلان ئـې دي خـبـر پـه حـقیقت — خوشحال

**حقیقي:**- (ح+قي+قي) [ع، ص] (۱) اصلي، ربنتونے، (۲) سکه، د یو مور پلار نه.

حقیقي ابر نېسان دي
یـو قران دویـم حـدیث — علیخان

**حکایت:**- (ح+کا+ي+ت) [ع، اس، مذ، وا، ج: حکایتونه] قصه، بیان داستان.

چې زما د ستا له عشقه ځوک خبر دي
د مـجنـون د لـیلا نـۀ کا حـکایـت — نجیب

**حُکم:**- (ح+ك+م) [ع، اس، مذ، وا، ج: حُکمونه] (۱) فرمان، ارشاد، وینا (۲) فتوي' (۳) اجازت (۴) د تاش په پانو کښې تور رنګے د پان په شان نشان.

کوم حکم ئې نۀ وړم یا زۀ څۀ وفا ترې غواړم
بیـا هغـه خـوبـان پـه ما په څۀ کا اعتراض — علیخان

**ـــــ اخستل:** اص.فرمان یا اجازت حاصلول

**ـــــ جاري کول:** اص.فرمان جاري کول

**ـــــ چلول:** اص. افسري او حاکمي کول، د حکم ورکولو توان لرل

**ـــــ عدولي کول:** اص.و ــــ حکم ماتول

**ـــــ عدولي کېدل:** اص.و ــــ حکم ماتېدل

**ـــــ کول:** اص.(۱) فرمان جاري کول (۲) اجازت ورکول

**ـــــ کېدل:** اص.(۱) فرمان جاري کېدل (۲) اجازت ورکېدل

**ـــــ ماتول:** اص.د چا خبره نۀ منل ،نا فرماني کول، حکم عدولي کول

**ـــــ ماتېدل:** اص.د چا خبره نۀ منلې کېدل، حکم عدولي کېدل

**ـــــ منل:** اص. تابعداري کول، فرمان په ځا ے راوړل

**ـــــ ورکول:** اص.فرمان ورکول، فرمان په ځا ے راوړل

**ـــــ ورکول:** اص .فرمان ورکول، اجازت ورکول، چاته د کار کولو وینا کول

**حکمت:**- (ح+ك+م+ت) [ع، اس، مذ، وا، ج: حکمتونه](۱) عقل، پوهه (۲) چـل، ترکیب، طریقه (۳) مطلب، غرض (۴) د هر څیز د حقیقت معلومولو علم (۵) طبیبي، علاج معالجه.

په حکمت به مې له ځان ۀ نۀ جاریاسي
کـه ابـوعـلي سـینا بـس کا چـپ — بېدل

چـې حـکمـت د یـار د لبو ورنمائے شـو
افلاطون ئې په حکمت کښې کړ حېران چپ — بېدل

**ـــــ څرګنده ول:** اص.عقل او پوهه استعمالول

**ـــــ کول:** اص.(۱) طبیبي کول (۲) چلول کول، تدبیر کول

**حُکمران:**- (حکم+ران) [فا، اس، مذ، وا، ج: حکمرانان مؤ، وا، حکمرانه، ج: حکمرانې]بادشاه، حاکم.

**حکمراني**:- (حُکم+را+ني) [فا، اِس، مؤ]بادشاهي، افسري، راج، حکومت، اختیار.

دا افرادو اتحاد پـه افرادو شي حاکـم
اتحاد لري طاقت وي طاقت حکمراني حمزه

**حُکمنامـه**:- (حکم+نا+مـه) [فا، اس، مـؤ، وا، ج: حُکمنـامې] لیکلـې حُکـم، فرمان

**حُکومت**:- (حُ+کو+م+ت) [ع، اِس، مذ، وا، ج: حکومتونه] و ـــ حُکمراني

قطب الدین چې د خواجه معین نائب دے
لائـې پاتـې دے پــه زړونــو حــکومـت حمزه

ـــ **کول**: اِص ـ بادشاهي کول، حکم چلول

**حکـیم**:- (ح+کـي+م) [ع، اس، مـذ، وا، ج: حکیمـان] (۱) الله پـاك (۲) پوهـه، عقلمند، هوښیار (۳) طبیب، ډاکټر

مرګ پـه حــکم د حکیم دے په غم نهٔ دے
ګوندې روح بــه مې د اه سره ســم اوخَت
ښیښه طور زړهٔ به مې کوم حکیم پیوند کا
چــې ذره ذره پــه ښــنګ د مــحبت لاړ
حکمیان مې څکه ویــنو تــه روح وائــي
درســت په وینــودے لړلے زمــا روح علي خان

**حکیمتــوب**:- (حکیم+تـو+ب) [پ، اِس، مـذ]حکیموالے، حکیمـي، طبابـت، ډاکټري

**حکیموالے**:- (حکیم+وا+لے) [پ، اِس، مذ] و ـــ حکیمتوب

**حکیمي**:- (ح+کي+مي)[پ، اِس، مذ] و ـــ حکیمتوب

**حــل**:- (ح+ل) [ع، اس، مــذ، وا، ج: حلونــه] (۱) ختمېــدل (۲) خلاصــېدل، واکېدل (۳) وېلې کېدل، تحلیل کېدل (۴) د حساب سوال ویستل.

معشوقــه چــې د جـبین غوټه خوره کا
د عاشق د خاطر غوټه شي فعال حال حل علیخان

ـــ **راویستل**: اِص ـ حل معلومول، د څه کار د کولو چل یا طریقه کتل

ـــ **کول**: اِص ـ (۱) ختمول (۲) خلاصول، واکول (۳) وېلې کول، تحلیل کول (۴) د حساب سوال ویستل

ـــ **کېدل**: اص ـ (۱) ختمېـدل (۲) خلاصېدل، واکېـدل (۳) وېلـې کېـدل، تحلیل کېدل (۴) د حساب سوال ویستلے کېدل

ـــ **لټول**: اِص ـ د څهٔ پېښنې مسئلې د ختمولو لاز ګودر کتل

**حــلاج**:- (ح+لا+ج) [ع، اِس، مـذ] (۱) اَلاج، تـنداپ، ډینـډپ، ډینـډت، (۲) د منصور لقب

**حلال**:- (ح+لا+ل) [ع، ص، مذ، مؤ، وا: حلاله ج: حلالې] (۱) روا، جائز، پـه شرع برابر. ۲. ذبح شوے ـ الال ـ

یا بــه هسې پوچ ګوئي کانـدي آغاز ه
چې مضمون ئې نهٔ مردار وي نهٔ حلال رحمن

ـــ **خوړل**: اِص ، جائز خوراك خوړل

درویــشي دا ده کــه تل حــلال خوري
که تل حلال خور بیا د خپل مال خوري خوشحال

**حلال حرام**:- (حلال+ح+را+م) [ع، اِس ص، مذ] ګډوډ، جائز نا جائز، پاك نا پاك

ـــ **خوړل**: اِص ـ پاك نا پاك او حـلال حرام تـه نهٔ کتـل، جائز نا جائز هـر څیـز خوړل، بډې رشوت خوړل

**حــلال خــور**:- (حلال+خو+ر) [فا، اِس، مـذ، وا ج: حـلال خوارهٔ، مؤ، وا: حـلال خوره، ج حلال خورې] (۱) حلال خوړوُنکے، پـه حـلال او جـائزه طریقـه مـال پیـدا کـووُنکے (۲) د ډېـره اسـماعیل خـان سـره نـزدې د سـیند پـه غـاړه اوسېدونکې یوه قبیله چې د اوبو ټول ژوندي سري خوري

**حلال خوري**:- (حلال+خو+ري) پپ، اِس، مؤ]په حلال خوړنه، په جائزه خوړنه

**حلالول**:- (ح+لا+ل+و+ل) [اپ، مص مت] (۱) ذبح کول، چاړهٔ پرې تېرول، مرې غوڅول (۲) جائز او رواګرځول (۳) په ډېر خدمت څوك زیات خوشحالول

اوس به سپلا به د وینو راشي
پاس په باړه کښې عاشقان حلالوینه!

**حلالونـه**:- (ح+لا+ل+ؤ+نـه) [اپ، حمـص] (۱) ذبـح کونـه، چـاړهٔ پرتېرونـه، مـرې غوڅونــه (۲) جــائز او رواګرځــول (۳) څــوك پــه ډېــر خــدمت زیـات خوشحالونه

**حلالووُنکــے**:- (ح+لا+ل+وُؤ+ن+کــے) [اپ، فــا، مــذ، وا، ج: حلالــوُنکي، مــؤ: حلالـوونکې] (۱) ذبـح کـووُنکے، چـاړهٔ پـرې راتېرـوونکے یـا راکښـونکے، مرې غوڅـوونکے (۲) جائز او رواګرځـوونکے (۳) څوك پـه ډېر خدمت زیات خوشحالووُنکے.

**حلاله**:- (ح+لا+له) [ع، اِس+ مؤ] (۱) یوه شرعي اصطلاح چې یـوه طلاقـه شـوې ښځه د دوئم کس سره نکاح اوتړي، طلاق ترې واخلي او بیا د اولني خاوند سره نکاح اوتړي (۲) جائزه، روا.

**حلالي**:- (ح+لا+لي) [اپ، اِص ص] (۱) د حلال پېدا، د نکاح کړې ښځې نـه پېدا (۲) نمك حلال، وفادار

**حلالېـدل**:- (ح+لا+ې+د+ل) [اپ، مـص لا] (۱) ذبـح کېـدل، چـاړهٔ پـرې تېرېـدل، مرې غوڅېدل (۲) جائز یا روا کېدل (۳) د چا په ډېر خدمت خوشحالېدل

**حلالېدنـه**:- (ح+لا+ې+د+نـه) [حمـص] (۱) ذبـح کېدنـه، چـاړهٔ پـرې تېرېدنـه، مـرې غوڅېدنـه (۲) جـائز یـا روا کېدنـه، حلالېـدهٔ، (۳) د چـا پـه خـدمت زیـات خوشحالېدنه

**حلالېـدوُنکے**:- (ح+لا+ې+دو+ن+کـے) [حلالېـدوُنکې] (۱) ذبـح کېـدوُنکے، مـرې غوڅېـدوُنکے (۲) جـائز یـا روا کېـدوُنکے (۳) د چـا پـه خـدمت زیـات خوشحالېدوُنکے.

**حلالېدهٔ**:- (ح+لا+ې+ده) [اپ، حمص] و ـــ حلالېدنه

**حلف**:- (ح+ل+ف) [ع، اس، مذ، وا، ج: حلفونه]سوګند، قسم

ـــ **اخستل**: اص ـ قسم کول، حلف اُوچتول، د وفاداری وعده کول، حلف پورته کول، حلف کول، حلف ورکول.

ـــ **اوچتول**: اِص ـ و ـــ حلف اخستل

ـــ **پورته کول**: اِص ـ و ـــ حلف اخستل

ـــ **کول**: اِص ـ و ـــ حلف اخستل

ـــ **ورکول**: اِص ـ و ـــ حلف اخستل

**حلف نامه**:- (حلف+نا+مه) [فا، اِس، مؤ، وا، ج: حلف نامې] لیکلے قسم، هغـه کاغذ چې سوګند یا قسم په کښې لیکلے وي.

**حلفي**:- (ح+ل+في) [ع، ص]حلفیه، قسمیه، د سوګند سره، د قسم له رویه

**حلفیه**:- (ح+ل+في+یه) [ع، ص] و ـــ حلفي

**حلــق**:-(ح+ل+ق) [ع، اِس، مــذ، وا، ج: حلقونــه] (۱) مــرې، غــاړه، چمغــرك، حلقوم (۲) کومے، دخولې دننه هغه حصه چې د ژبې د وېخ نه پس شروع کېږي

ـــ **ازغي ازغي کېدل**: اِص ـ حلق وُچېدل، د بیماری یا تندې لـه کبلـه مـرې

سپوره کېدل يا ستغنده کېدل

ـــــ **تخنېدل**: اص ـ د زکام په حالت کښې مرۍ خاربنتېدل

ـــــ **تريخېدل**: اص ـ ډېر تنګېدل، ازارېدل، عزابېدل

بس که حلق مې تريخ شۀ ډېر دې راکښمه په غنو
زيـر زرغـون مـلال شـوم لـکه ګـل د کربـلې علیخان

ـــــ **خاربنتېدل**: اص ـ و ـــ حلق تخنېدل

ـــــ **خوږېدل**: اص ـ (۱) حلق سوځېدل، مرۍ درد ېدل (۲) مرۍ تـه خوږلښت رسېدل

ـــــ **سپورېدل**: اص ـ (۱) حلق وچېدل، تږے کېدل (۲) د يرې يا خفګان له کبله خبره د خولې نه نۀ وتل.

ـــــ **حلق سترے کېدل**: اص ـ په ډېرو ناروا خبرو مرۍ وُچېدل.

ـــــ **سوځېدل**: اص ـ (۱) حلق خوږېدل (۲) د زيـات خوږ څيـز د خوړلـو لـه کبله مرۍ سوځېدل

ـــــ **لمدول**: اص ـ لږې شان اوبۀ څښل ، يو ګوټ اوبۀ څښل

ـــــ **لمدېدل**: اص ـ (۱) لږ شـان اوبـۀ څښـلې کېـدل (۲) خوشـحالېدل، لاړه تېرېدل

ـــــ **وُچېدل**: اص ـ و ـــ حلق سپورېدل

**په حلق کښې ساه نښتل**: اص ـ (۱) د ځنکدن حالت (۲) د ويرې په حالت کښې خبرې د خولې نه نۀ وتل

**په حلق کښې نښتل**: اص ـ څه څيز په مرۍ کښې نښتل يا ايسارېدل

**د حلق نه نۀ تېرېدل**: اص ـ د څۀ څيز خوراک ته زړۀ ښخې نۀ کېدل

**د حلقه زلقه پرېوتل**: اص ـ مرګ ته نزدې کېدل، اخري سلګۍ وهل

**حلقوم**:- (ح+ل+قو+م) [ع، اس، مذ] و ـــ حلق

لکه کب چې په درست تن ازغي ازغي شي
د عشـق سـتـن دې تـېره مه شه له حلقومَ علیخان

**حلقه**:- (ح+ل+قـه) [ع، اس، مؤ، وا، ج: حلقې] (۱) کړۍ، دائره، ګړۍ، والـۍ (۲) رورولي، عزيزولي، بائي بندي.

د پرهـېـز د مـړنو د سـترګو برېښنه
پـه حلقو کښې د کاکلو شېرافګنده علیخان

**په حلقه کښې راتلل**: اص ـ مُريد جوړېدل، تابعدار کېدل

**د زلفو حلقه**: اص ـ د زلفو پيچ يا تاؤ

لېونې دې په حقله د زلفو بند شو
ويسا نـۀ کاندي په دام مرغ دانه خواجه محمد بنګښ

**حلقه بګوش**:- (حلقه+ب+ګو+ش) [فا ، اس ص، مذ، مؤ، وا: حلقه بګوشـه، ج: حلقه بګوشې] ، تابعدار ، مرئي ، غلام ، نوکر ، فرمانبردار.

څۀ شي که مداهوش يم ستا د در حلقه بګوش
سوے د عشق جوش يم جګي جګي تکيه ګاه علیخان

ـــــ کېدل: اص.

زۀ به ستا حلقه بګوش مرئي بنده يم
ترهـېدلے يـار زما سـره اشنا کړه هوتک

**حلم**:- (ح+ل+م) [ع، ص] ، نرمي ، پوستوالے ، نرموالے.

په هر ځاے کښې حلم کله پـکارېږي
که درياب سره بې چوبه روزګار کېږي شېدا

**حلوا**:- (ح+ل+وا) [ع، اس، مؤ، وا، ج: حلواګانې، حلوې] (۱) وربشـه، روشـه (۲) خوږ څيز (۳) پوست، نرم (۴) اسان

ورې هزار تراوۀ تراخۀ دناصحانو
وايــه ولــې په يوه نمرۍ حلوا ؟ حمید

ـــــ **ته جوړول**: اص ـ حلوا د خوراک کول ، څوک دومره وهـل چې د پوست څيـز نه سېوا بل څه نۀ شي خوړې

ـــــ **جوړول**: اص ـ حلوا تيارول، حلوا کول، حلوا پخول

ـــــ **کول**: اص ـ ډېر زيات پستول، مېده کول، زيات نرمول

ـــــ **خوړل**: اص ـ (۱) وربشه خوړل (۲) اسان کار کول

ـــــ **د خوراک کول**، اص ـ و ـــ حلوا ته جوړول

ـــــ **زهر کېدل**: اص ـ (۱) ښـۀ شـے پـه ځـان بـد راتلـل (۲) بـد قسـمتي او بدبختي راتلل

ـــــ **شمارل**: اص ـ حلوا ګڼل، اسان شمارل

ـــــ **کېدل**: اص ـ (۱) حلوا جوړېدل (۲) زيات نرمېدل (۳) خوږېدل

ـــــ **ګڼل**: اص ـ و ـــ حلوا شمارل

**په حلوا کښې ازغې کېدل**: اص ـ بد قسمتي راتلـل ، پـه ښـه کښـې بـده پېښـېدل،

متل: د خوار چې کم بختي شي په حلوا کښې ئې ازغي شي

متل : د خوار چې کم بختي شي ، په خلوا کښې ئې اغزي شي

**په حلوا کښې غاښ ماتېدل**: اص ـ (۱) بد بختي راتلل (۲) اسان کار ګرانېدل

**د حلوا په شان**: اص ـ د حلوا د ځايه ، زيات اسان ښېخي اسان

**د حلوا د ځايه**: اص ـ و ـــ د حلوا په شان

**حلـوائي**: (ح+ل+وا+ئـي) [فـا ، اس، مـذ ،وا ، ج: حلوايـان]، حلـوا جـوړونکے ، مېتهائي تيارونکے ، ۲. غټ او څورب بنيادم ، پړسېدلے.

د مـګسو زنـدګي ده پـــه دوکـان د حـلوائـي
زۀ طوطي شکر پرست يم د ستا شونډې مېتهائي رحمت

**حلـيم**:- (ح+لـي+م) [ع، اس ص، مـذ ، وا ، ج: حليمـان مـؤ، وا: حليمـه، ج: حليمې] (۱) د خداے پاک صفتي نوم (۲) صبر ناک، پوست، نرم (۳) يو قسم خوراک چې شپږ اوۀ توګه غلې غوښه او مساله په کښې واچولې شي، ټوله شپه ئې پوخ کړي او دغوږو داغ ورکړي .

اباسيند و ته نعره و کړه په زورَ
و لنـدي تـه وبنا اووايه حليمَ خوشحال

**حليم طبع**:- (حليم+ط+ب+ع) [ع، اس ص، مذ] نرم مزاجه، پوست خويه

لکه زۀ يم په عشق کښې حليم طـبع
يو په سل مې يار له مې دې حليم طبع خوشحال

**حليمه**:- (ح+لي+مه) [ع، اس معرفه، مؤ]د حضور پاک ﷺ د دائي نُوم

**حُليه** :- (ح+ل+يه) [ع، اس، مؤ، وا ، ج: حُليې]شکل، صـورت، څېـره، بشـره، خط وخال، ګُونه،

ـــــ **بدلول**: اص ـ (۱) خپله ګونه په خپله بدلول (۲) په وهلو وهلو د چامخ ورانول، حليه ورانول

ـــــ **ورانول**: اص ـ و ـــ حُليه بدلول

**حمـار**:- (ح+مـا+ر) [ع، اس، مـذ ، وا ، ج: حمـاران، مـؤ، وا: حمـاره، ج: حمارې] ، خر

که هر څو دې علم ډېر دے عمل نۀ کړې
تـۀ حـمار ئې پـه تا ابـنـې کـتابـونه خوشحال

**حماقت**:- (ح+ما+ق+ت) [ع، ص، مذ ، وا ، ج: حماقتونه]ناپوهي، ناداني، کم عقلي، بې وقوفي، خرتوب،

ـــــ **څرګندول**: اص ـ خرتوب کول، حماقت، غلط کار کول

ـــــ **څرګندېدل**: اص ـ خرتوب کېدل: حماقت کېدل، غلط کار کېدل

ـــــ **کول**: اص ـ و ـــ حماقت څرګندول

ـــــ **کېدل**: اص ـ و ـــ حماقت څرګندېدل

**حمال:-** (ح+ما+ل) [ع، اس، مذ، وا، ج: حمالان] پانډي، قلي، مزدور

**حمام:-** (ح+ما+م) [ع، اس، مذ، وا، ج: حمامُونه] (۱) د لامبلو ځاے، ګرمه سقاوه (۲) کوټتره.

اهل شر ته د شاهين منګل پيدا کړه
اهلِ خبرو ته حليم شه تر حمامَ خوشحال

**ـــــ کول:** اِص۔ په ګرمه سقاوه کښې لامبل

**حمائل:-** (ح+ما+ئي+ل) [ع، اس، مذ، وا، ج: حمائلونه] (۱) په غاړه کښې د اچولو څيز (۲) ورکوټے قرآن شريف

په قضا ئې رضا وروره هر چې ستا په باب ئې کړي
په هيڅ رنګ به دفع نۀ شي په تعويذ په حمائل خوشحال

**حمايت:-** (ح+ما+ي+ت) [ع، اس، مذ، وا] ملګرتيا، مرسته، امداد، طرفداري، پره

رقيبانو به لرغون وم پيمال کړے
معزالله که مې يار نۀ کړے حمايت معزالله

**ـــــ کول:** اِص۔ پره کول، طرفداري کول، امداد و مرسته کول

**ـــــ کېدل:** اِص۔ پره کېدل، طرفداري کېدل، امداد او مرسته کېدل

**حمايتي:-** (ح+ما+يي+تي) [پ، اس، مذ، وا، ج: حمايتيان] ملګرے، مرستيال، پره دار، مددګار، ساتندويه

**حمد:-** (ح+م+د) [ع، اس، مذ، وا، ج: حمدُونه] (۱) د خداے پاک تعريف، ثنا صفت، (۲) هغه شعرونه چې د الله پاک ثنا صفت په کښې شوے وي۔

واړه ستا د حُسن مدح و حمد کاندي
په مخلوق کښې چې څوک دي حامد مدام (نجيب سربندے)

**ـــــ تړل:** اِص -حمد تيارول، حمد جوړول، د خداے پاک په ثنا صفت کښې اشعار موزونول

**ـــــ تيارول:** اِص۔و ـــــ حمد تړل

**ـــــ جوړول:** اِص۔ و ـــــ حمد تړل

**ـــــ کول:** اِص۔د الله پاک تعريف، ثنا صفت بيانول، حمد وئيل

**ـــــ کېدل:** اِص۔د الله پاک تعريف، ثنا صفت بيانېدل، حمد وئيلے کېدل

**ـــــ وئيل:** اِص۔(۱) د الله پاک ثنا صفت بيانول (۲) حمديه شعرونه اورول

**حمل:-** (ح+م+ل)[ع، اس، مذ، وا، ج: حملونه] (۱) بار، بوج (۲) د اسمان هغه برج چې د ګډ په شان دے (۳) اُمېند، د بچي د پيدا کېدو اميدواري۔

ډېر هسې اُمور دي چې اختيار په کښې يار نۀ دے
حمل وي د چا په نصيب لور وي د چا زوے شي علي خان

**ـــــ اچول:** اِص -د ښځې بچے زيانېدل، د پېداوښت نه وړاندې د بچي زيانېدل، حمل غورزول، حمل پرېوتل

**ـــــ حمل پرېوتل:** اِص۔ و ـــــ حمل اچول

**ـــــ زيانېدل:** اِص۔بچے زيان کېدل

**ـــــ غورزول:** اِص۔ و ـــــ حمل اچول

**ـــــ کېدل:** اِص۔امېند پيدا کېدل، بچے په ښځه کښې کېدل

**حمله:-** (ح+م+له) [ع، اس، مؤ، وا، ج: حملې]چپاؤ، يرغل، هپه، هله، بريد۔

په حملو حملو مې زړۀ وړي نۀ پوهېږم
آفريدي ده که ختک الغياث رحمن

**ـــــ په ښځ کول:** اِص۔ و ـــــ حمله تښول

**ـــــ تښول:** اِص۔حمله په ښځ کول، چپاؤ په شا کول، حمله ستنول

**ـــــ ستنول:** اِص ۔ و ـــــ حمله تښول

**ـــــ کول:** اِص ۔ يرغل کول، هپه کول، چپاؤ کول، بريد کول، ورختل، وردانګل، ګذار کول

**ـــــ کېدل:** اِص۔يرغل کېدل، چپاؤ کېدل، هپه کېدل، بريد کېدل

**حمله اور:-** (حمله+آ+و+ر) [فا، اس فاع، مذ، مؤ، وا: حمله اوره، ج: حمله اوري]حمله کوونکے، يرغل کوونکے، بريد کوونکے، هپه کوونکے، ورختونکے، ګزار کوونکے]

**حميد:-** (ح+مي+د) [ع، اس، مذ] (۱) ستائلے شوے (۲) د خداے پاک صفتي نُوم (۳) د پښتو ژبې يو مشهور شاعر عبدالحميد ماشوخيل

**حِنا:-** (ح+نا) [ع، اس، مؤ] نکريځې، يو بوټے چې د مېده کولونه پس اوبۀ په کښې واچولې شي او په لاس او پښو اولګولے شي نو سور رنګ پرېږدي.

څۀ شي چې مې ګاه ګهے سُرخي په مخ کښې وينې
واړه د رقيب له جوشه سُور لکه حِنا يم خواجه محمد بنګښ

**ـــــ پوري کول:** اِص ۔ نکريځې لګول

په سپين لاس ئې پورې کړي دي حِنا
که سرۀ کړي دي په وينو د اشنا خواجه محمد بنګښ

**حنائي:-** (ح+نا+ئي) [پ، ص] د نکريځو، د نکريځو په رنګ، سوربخن چې روستو زيړبخن شي

**حنبل:-** (ح+م+ب+ل) [ع+ اِس، مذ، وا] (۱) سمندر (۲) د مشهور امام احمد د پلار نُوم

**حنبلي:-** (ح+م+ب+لي) [ع، اس ص] (۱) د سني مسلمانانو هغه فرقه چې د امام احمد په فقه عمل کوي (۲) د حنبلي فرقې يو غړے

**حنظل:-** (ح+ن+ظ+ل) [ع، اِس، مذ، وا، ج: حنظلي]مرغونړے، ترخه منه

ماخربوزه ګڼلې وې او تۀ حنظل اوختې
په ظاهر ښۀ او په باطن خرګے د تهل اوختې حافظ عبدالعظيم ګنداپور

**حنفي:-** (ح+ن+في) [ع، اِس ص] (۱) د سني مسلمانانو هغه فرقه چې د امام اعظم په فقه عمل کوي (۲) د حنفي فرقې يو غړے۔

د څښتن څلور دي پيغځۀ نۀ دي
حنفي سُني مذهب د دين په کار يم خوشحال

**حوا:-** (ح+وا) [ع، اِس معرفه، مؤ ] د بابا آدم عليه السلام ښځه، د ټولو بنيادمو مور۔

نور هالۀ د محمد وو پيدا شوے
چې بوئي نۀ وو د آدم او د حوا رحمن

**حواري:-** (ح+وا+ري) [ع، اس، مذ، وا، ج: حواريان] د حضرت عيسٰي عليه السلام ملګري يا شاګردان.

**حواس:-** (ح+وا+س)[ع، اس، مذ، ج، وا: حس] (۱) د معلومولو قوت (۲) د بنيادم هغه قوتونه چې دې پرې حس کولے شي چې په کښې پينځۀ ظاهري او پينځۀ باطني قوتونه دي (۳) هوش، خود، عقل، پوهه، فکر۔

چې سختي د بېلتانۀ پرې تل تېرېږي
شو زما خلل پزير واړه حواس نجيب سربندي

**حوالات:-** (ح+وا+لا+ت) [ع، اِس، مذ، وا، ج: حوالاتونه] قيد، بند، هغه بندي خانه چې د مقدمې د تفتيش په دوران کښې ملزم په کښې بند ساتلے شي.

**حوالاتي:-** (ح+وا+لا+تي) [پ، اس، مذ، وا، ج: حوالاتيان] د حوالات قيدي يا بنديوان هغه څوک چې په حوالات کښې اچولے شوے وي.

**حوالدار:-** (ح+وا+ل+دا+ر) [فا، اس، مذ، وا، ج: حوالداران، مؤ، وا: حوالداره، ج: حوالداري] دفعدار، د فوځ هغه عهده دار چې څو سپاهيان ترې لاندې وي او په مځ ئې درې فيتې لګولې وي.

**حوالداري**:- (ح+وا+ل+دا+ري) [پ، اِس، مؤ، وا، ج: حوالداری] دفعداري، د حوالدار عهده، د درېِ فیتو ترقي.

**حواله**:- (ح+وا+له) [ع، اِس، مؤ، وا، ج: حوالې] (۱) سپارښتنه، سپارلے کېدل (۲) پته، نخښه، نښان، اته پته.

ـــــ **کول**: اص.سپارل، ورکول، ورپه غاړه کول

ـــــ **کېدل**: اص.سپارلې کېدل، په غاړه کېدل

ـــــ **ورکول**: اص. (۱) د چا سرېِ نخښه پته ورکول (۲) د یو کتاب لیک په گوته کول

**حُوت**:- (حو+ت) [ع، اِس، مذ] (۱) غټ کب، مهے (۲) د اسمان دولسم برج

**حُوره**:- (حو+ره) [پ، اِس، مؤ، وا، ج: حورې] (۱) د جنت ښائسته ښکلې ښځه، (۲) ښائسته زنانه

که په خوئ ملائکه حُوره په رنگ وي

هم رښا گـنه رښتـسیا تورتم د لونو علیخان

**حوصله**:- (حو+ص+له) [ع، اِس، مؤ، وا، ج: حوصلې] (۱) توان، وَس، طاقت، همت (۲) زړۀ ورتیا، جرات (۳) زغم، برداشت، صبر.

راته شو یاد چې حوصله مې ددیدن نشته دے

د ښکلي یار کوڅۀ که ماوتـه یـو گـام پـاتې وه حمزه

ـــــ **بائیلل**: اص. (۱) زړۀ غورزول، وار خطا کېدل، ویرېدل، (۲) بې صبره کېدل

ـــــ **کول**: اص. (۱) زغم نه کار اخستل، صبر کول (۲) تسلي ورکول

ـــــ **ورکول**: اص. ډاډگیرنه ورکول، تسلي ورکول

**په حوصله**: اص.په مزه، ورو، ورو ورو، په قلاره

**حوض**:- (حو+ض) [ع، اِس، مذ، وا، ج، حوضُونه] تالاؤ، تـالاب، اَوتې، جُوړ، جیوړ، ډنډ

حق تعالی که ئې نصیب کا

هـغه شـیرین حـوض کوثر رحمن

**حـویلي**:- (حَ+وي+لۍ) [پ، اُر: هـویلي، اِس، مـؤ] مـانۍ، محـل، لـوے پـوخ مکان

دا اوچـتې حـویلۍ دي علیخانَ

زمانه به ئې شو ورځو له ډیرے کا علیخان

**حیا**:- (ح+یا) [ع، اِس، مؤ، وا، ج: حیاگانې] شرم، پړده، حجاب

نۀ دي شرم نۀ حیا شته نۀ دي صبر

دا سپور مخ به گرځوې سپېرۀ لټ علیخان

ـــــ **حیا اخستل**: اص.شرمول، بې عزته کول، بې پړدې کول

ـــــ **تلل**: اص. بې عزته کېدل، شرمېدل

ـــــ **راتلل**: اص. شرم کول، شرم محسوسول

ـــــ **راوستل**: اص . عزت ساتل، پړده راوستـل، د عزت پـه کـار کښې د چا امداد کول

ـــــ **کول**: اص.شرم کول، د خپـل عزت لـه مخـه د بـل د وړاندې درُوند خوي کول، لحاظ ساتل .

ـــــ **کېدل**: اص.لحاظ ساتلے کېدل، شرم کېدل، د عزت خیال ساتلے کېدل

ـــــ **په حیا**: اص . (۱) په پړده، پټه (۲) د شرم او عزت سره برابر

ـــــ **په حیا کښې پاتې کېدل**: اص.په پړده کښې پاتې کېدل، په عزت کښې د ژوند شپې ورځې تېرول، د شرمېدلو نه بچ کېدل

**په حیا کښې پرېښول**: اص. په پړده کښې پرېښول، د شرمولو نه بچ کول

**په حیا کښې پېښې ایستل**: اص . د شرمېدلو یا بې عزتـه کېدلونـه وړاندې د یو ځایه تلل

**په حیا کښې ځان ساتل**: اص.ځان د بې عزتۍ نه بچ ساتل، داسې ځـاے تـه نه ورتلل چې په کښې د بې عزتۍ خطره وي

**په حیا کښې خبره خلاصول**: اص.په پړده کښې څۀ فیصله کول، د شرمېدلو او بې عزته کېدلو نه اگاهو څۀ معامله فیصله کول

**په حیا کښې د کوره وتل**: اص. (۱) د زنانه د خپل کور نـه پـه پـړده کښـې بهـر وتل (۲) زنانه یا د سرې د کور د خلقو سره د شر فساد جوړېدلو نـه وړاندې پـه حیـا کښـې پښـې ایسـتل (۳) پـه حیـا پـړده کښـې د زنانـه مرکېدل (۴) په حیا کښې وادۀ کېدل

**په حیا کښې کار کول**: اص.د بې عزته کېدونه وړاندې کار تر سره کول

**خپله حیا ساتل**: اص.خپل عزت پړده په ځاے ساتل، ځان نۀ شرمول

**د بل حیا ساتل**: اص. (۱) د بل د شرم پړدې خیال کول، د بل عزت کـول (۲) پـه بـل پړده اچول، د چا راز نۀ ښکاره کول

**د حیا**: اص.د شرم، د پړدې، د عزت، د درناوي

د حیا مُهر مې په خولۀ دے

د زړۀ رازونه مې په ژبه نۀ راځینه ټپه

**د حیا خاوند**: اص.حیا ناك، شرمناك، درُوند، عزتمن

**حیات**:- (حَ+یا+ت) [ع، اِس، مذ، وا] ژوند، ژوندون، ساه

په ځنکدن کښې دې توبه رب ته قبوله نۀ ده

چې پـه حیات د نارواؤ نـه سوگند او نۀ کړې الپوري

**حیا حُرمت**:- (حیـا+ح+ر+م+ت) [پ تر، اِس ص مذ] شرم پړده، ننگ ناموس، عزت، درانښت

**حیادار**:- (حیا+دا+ر) [فاتر، اِس ص، مذ، وا، ج: حیـا داران، مؤ، وا: حیـاداره، ج: حیاداري] حیاناك، شرمناك، د شرم او لحاظ خاوند

**حیاداري**:- (حیا+دا+ري) [پ تر، اِس، مؤ] دروندوالے، شرم پړده لرل

**حیاناک**:- (حیا+نا+ك) [پ تر، اِس ص، مذ، مؤ، وا: حیاناکه، ج: حیا ناکې] وـــــ حیا دار

**حېثیت**:- (حې+ثي+ي+ت) [ع، اِس، مذ، وا، ج: حېثیتونه] (۱) درجه، رتبه، ترقـي (۲) وس، تـوان (۳) امـدن (۴) قابلیـت (۵) طـور طریقـه (۲) ډب، انداز، (۲) خاصیت، خصوصیت

**حېدر**:- (حې+د+ر) [ع، اِس، مذ] (۱) زمـرے (۲) د حضرت علي کرم الله وجهه لقب (۳) د مسلمانانو یو عام نوم

**حیـدر ابـاد**:- (حیـدر+آ+با+د) [اُر، اِس معرفـه] (۱) پـه هندوسـتان کښـې د مسـلمانانو یـو پخوانۍ ریاست او همدغـه ئې د تخت ښـهر هـم وو (۲) سندھ کښې یو مشهور ښهر.

**حیدري**:- (حې+د+ري) [ع، ص] د حیدر سره تعلق لرونکې د حضرت علي کرم الله وجهه سره منسوب

**حېران**:- (حې+را+ن) [ع، اِس، مذ، مؤ، وا: حېرانه، ج: حېرانې] (۱) اك بك، اك دك، اریان دریان، گوته په خولۀ (۲) په ژوند پورې تنگ

دا ئې زلـفې پـه مـخ لـگې زۀ حـېران یـم

که زنگې دے چې په لاس ئې نبراس واخست علیخان

ـــــ **اودرېدل**: اص.اك دك پاتې کېدل، اریان دریان کېدل، د څۀ کار پـه سر پښنوئه پوهېدل، حېران پاتې کېدل

ـــــ **حېران پاتې کېدل**:- اص. وــــ حېران اودرېدل

**حېرانول**:- (حې+را+ن+و+ل) [پ، مص مت] (۱) اك دك کول، اریان دریـان پـاتې کول، اریانول، په څۀ کار پورې ستومانه کول (۲) په څۀ عجیبـه کـار کولـو

بل ګوته په خوله اريانول

**حېرانونه**:- (حېِ+را+ن+ؤ+نه) [پ حمص] (۱) اك دك كونه، اريان دريان پاتې كونه، اريانونه په څۀ كار پورې ستومانه كونه (۲) په څۀ عجيبه كار كولو بل ته ګوته په خوله، اريانونه

**حېرانووُنكے**:- (حېِ+را+ن+وُو+ن+كے) [پ فاع، مذ، وا، ج: حېرانووُنكي، مؤ، حېرانوونكې] (۱) اك دك كوونكے، اريان دريان پاتې كوونكے اريانوونكے، حېرانوونكے (۲) په څۀ عجيبه كار كولو بل ګوته په خلۀ اريانوونكے.

**حېرانووُنے**:- (حېِ+را+ن+وو+نے) [پ، فاع، مذ، وا، ج: حېرانووني، مؤ: حېرانووُنې] و حېرانووُنكے

**حېراني**:- (حېِ+را+ني) [پ، اِس، مؤ]پرېشاني، تعجب، ارياني

**حېرانېدل**:- (حېِ+را+نې+د+ل) [پ، مص لا]اريانېدل، اَك دك يا اَك بك پاتې كېدل، ګوته په خولۀ پاتې كېدل، پرېشانېدل

**حېرانېدنه**:- (حېِ+را+نې+د+نه) [پ، حمص]اريانېدنه، اَك دك يا اك بك پاتې كېدنه، ګوته په خولۀ پاتې كېدنه، پرېشانېدنه، حېرانېدۀ

**حېرانېدوُنكے**:- (حېِ+را+نې+دو+ن+كے) [پ، مف، مذ، وا، ج: حېرانېدوُنكي، مؤ حېرانېدوُنكې] اريانېدوُنكے، اَك دك يا اَك بك پاتې كېدوُنكے، ګوته په خوله پاتې كېدونكے، پرېشانېدونكے

**حېرانېدۀ**:- (حېِ+را+نې+دہ) [پ، حمص] و حېرانېدنه

**حېرت**:- (حېِ+ر+ت) [ع، اِس، مذ]حېراني، تعجب، حېرانتيا.

څوك چې ووينې باريكه مې د يار ملا
ورتـه نيسي له حېرتَ هر هوښيار ملا — عليخان

**حېض**:- (حېِ+ض) [ع، اِس، مذ]جامې كېدل، جامې پليتېدل، ماهواري د زناناؤ بيماري، چې د عمر يو خاص وخت پورې په مياشت كښې يو ځل ورته لګي.

**حېف**:- (حېِ+ف) [ع، اِس، مذ]افسوس، ارمان، دربغه

حېف د ےدا چې زۀ لاڅۀ نور په لګُونو
تركـو بـند كـړل د خپل عشق په لاتجو — عليخان

**حيله**:- (حي+له) [ع، اِس، مؤ، وا، ج: حيلې] چل، بهانه، فرېب، ټېل ټال،

**حيلې حوالې كول**: اص.-بانې جوړول، چل ول كول، ټېل ټال كول

**حېوان**:- (حې+وا+ن) [ع، اِس، مذ، وا، ج: حيوانان مؤ، وا: حيوانه، ج: حيوانې](۱) ژوند (۲) ځناور، باروې، ژوې، زنده سرې (۳) كم عقل، ناپوهه، بېوقوف، نادان

هرچې اصل ددنيا دي حال ئې دا دے
كه سړے دے كه پېړے دے كه حېوان — رحمن

**حېوان مطلق**:- (حيوان+م+ط+ل+ق) [ع، اِس ص مذ](۱) ځناور، چارپايه، ډنګر، (۲) ناپوهه، بېخي كم عقل، بې تميزه

**حېوان ناطق**:- (حيوان+نا+طِ+ق) [ع، اِس ص مذ] (۱) خبرې كووُنكے ځناور (۲) انسان، بنيادم

**حېوانتوب**:- (حيوان+تو+ب) [پ، ص، مذ](۱) حېوانيت، ځناور توب، حېوانتيا (۲) بې حيائي، بې شرمي (۳) ناپوهي، بې وقوفي كول: اِص

(۱) ځناور توب كول (۲) بې حيائي كول، بې شرمي كول (۳) نا پوهي كول، بيوقوفي كول

**حيوانتيا**:- (حې+وا+ن+ت+يا) [پ، اِس، مؤ] و ـــ حيوانتوب

**حيواني**:- (حې+وا+نې) [پ، ص، مؤ](۱) د انسانيت خلاف، د انساني ضد (۲) نفساني، شهواني

**حېوانيت**:- (حې+وا+نې+ي+ت) [ع، اِس ص، مؤ] و ـــ حيوانتوب

◈◈◈

# خ

**خ:-** (خې) [حرف، مؤ، وا، ج: خې ګانې]

**خاپ:-** (خا+پ) [پ، اِس، مذ، وا، ج: خاپونه]خپ، خراپ، نخښه، چاپ

**خاپوړت:-** (خا+پو+ړ+ت) [اَف: پ(قاموس)، اس مذ، مؤ، وا: خاپوړته] هغه حیوان چې د تلو په وخت ئې خېټه په زمکه لګي

**خاپوړن:-** (خا+پو+ړن) [اَف: پ(قاموس) اس، مذ، وا+ج، مؤ، وا: خاپوړنه، ج: خاپوړنې]په خاړ پوخو تلوُنکے، په خاپوړو تلوُنکے ماشوم، هغه ورکوټے ماشوم چې په لاسو او ګوډو ځان راکښي

**خاپوړي:-** (خا+پو+ړي) [پ، اِس، مذ] خاړپوخې

**خاتم:-** (خا+ت+م) [ع، اِس، مذ] اخري ختموونکے، پائې ته رسوونکے

**خاتم الانبیاء:-** (خا+ت+م+ل+ا+ن+ب+یا) [ع، اس ص، مذ] اخري پېغمبر، حضرت محمد صلی الله علیه وسلم چې د هغوي نه پس بل پېغمبر نشته

**خاتمه:-** (خا+ت+مه) [ع، اِس، مؤ] (۱) انجام، اخر، نتیجه (۲) مرګ (۳) د کتاب هغه عبارت چې کتاب پر ختمېږي

**خاتوری:-** (خا+تو+رَ+ئي) [اف، پ (قاموس) اِس، مؤ] دا توره، دمتوره دیتوره، باتوره، بریك

**خاتورے:-** (خا+تو+رے) [پ (ظفر)، اِس، مذ وا، ج: خاتوري] شفتالو، شلتالو، شتالو

**خاتون:-** (خا+تو+ن) [فا، اِس، مؤ] بېګم، بي بي، مېرمن

**خاتهٔ:-** (خا+ته) [پ، اس] (۱) په پېچومي یا ستغ خاتنه (۲) پاس الوتنه، اوچتېدنه (۳) نمر خاتهٔ، مشرق، خاتیز (۴) د بېخ نه وتنه (۵) د ژور ځاے نه پاس راوتنه (۶) فصل یا وابنهٔ راټوکېدنه (۷) جوړ یا بند بې ځایه کېدنه

د ماتري غانبے نبغ دروميي اسمان ته
په خاتهٔ خاتهٔ لنډېږي باندې سپيني — خوشحال
د مرغي که وزر شته الواتهٔ کا

څهٔ په دور لکه باز هسې خاتهٔ کا — خوشحال
په کاتهٔ کاتهٔ مې سترګې په خاتهٔ شي
چې خبر دې د راتلو راباندې اوشي — خوشحال

**خاته:-** (خا+ته)[پ، اِس، مؤ، وا، ج: خاتې](۱) کهاته، د چا پټ حساب کتاب (۲) د خاورو په مزدورۍ کښې کنستلې ډوغل چې د حساب کتاب د پاره ئې پیمائش کولے شي (۳) کتاب ګوټے (۴) د بېډیو یا شپشتو یوه لوبه

**بندول:** اَص (۱) حساب کتاب ختمول (۲) د چا سره لېن دېن

**خلاصول:** اَص (۱) حساب کتاب شروع کول (۲) حساب بې باك کول

**صفا کول:** اَص (۱) د مزدورۍ د پاره کنستلې ډوغله اواره ول (۲) حساب کتاب خلاصول، چا پت پرې کول

**خاتیز:-** (خا+تي+ز) [پ، اِس، مذ] نمر خاتهٔ، د راختلو ځاے، د ختلو ځاے، خاتهٔ

**خاټول:-** (خا+ټو+ل) [پ، اِس، مذ] غانټول، دلاله ګل، خنټول

د خاټول تر ګل پسته ده
ژړه چېرې مېلمنه ده — کاکړې لنډۍ

**خاچوپوچ:-** (خا+چو+پو+چ) [اَف: پ(قاموس)، اس مذ] د کور بې کاره ښيزونه

**خاچُونړے:-** (خا+چو+ن+ړے) [اَف: پ(قاموس)، اِس، مذ، مؤ: خاچونړۍ] بلبل، بلبله، عندلیب

**خاچي:-** (خا+چي) [اَف: پ (قاموس)، اِس، مذ] موښې، کچې، ګېنۍ، موسۍ، لپانکۍ، د ماشومانو د لوبو غنډ شان کانړے

**خادم:-** (خا+د+م) [ع، اِس، مذ، وا، ج: خادمان، مؤ، وا: خادمه، ج: خادمانې] (۱) خدمتګار، نوکر، خدمتي (۲) تابعدار (۳) منجاور، د درګاه یا جماعت خدمت کوونکے (۴) د پښتو د یو مشهور شاعر تخلص

**خادمتوب:-** (خادم+تو+ب) [پ، اِس، مذ] تابعداري، نوکري، خدمت

**خادمه:-** (خا+د+مه) [اَف: پ (قاموس)، اس، مؤ] غنم، شلانډه، غاروئي، دسمسرې یو قسم، خادمۍ

**خادمۍ:-** (خا+د+مۍ) [پ (صوابي)، اِس، مؤ] سمسره

**خاده:-** (خا+ده) اَف: پ (قاموس)، اِس، مؤ، وا ج: خادې] دوه درې انچه قدر غنم اُوړده لښته

**خار:-** (خا+ر) [فا، اِس، مذ، وا، ج: خارُونه] (۱) ازغے، اغزے (۲) کینه، رخه (۳) شك، وهم (۴) ازغۍ، مګزۍ، مېنکورې، خزمکې د چرګ په پښه کښې د پنجې نه پاس نرۍ د غوښې ګوته شان چې د بل چرګ سره په جنګ کښې پکار راولي (۵) په باجوړ کښې یو کلے

**ـــــــاچول:** اَص: په څهٔ روان کار کښې شك پیدا کول

**ـــــــخوړل:** اَص: د چا په لیدو یا په څهٔ خبره په زړهٔ کښې شك پیدا کېدل

**ـــــــورکول:** اَص، دچا په زړهٔ کښې یا کار کښې شك اچول

**خارا:-** (خا+را) [اَف: پ(قاموس)، اِس، مؤ](۱) د زړې زمانې یوه رېښمینه کپړه (۲) سخت کانړے، سخته تیږه

**خارانے:-** (خا+را+نے) [اَف: پ(قاموس)، اِس مذ] د سوېل باد

**خارج:-** (خا+ر+ج) [ع، اِس، مذ، مؤ، وا: خارجه ج: خارجې](۱) ویستلې، لرې کړې، کټ کړې (۲) نا منظور (۳) باهر

**خارجول:-** (خا+ر+ج+و+ل) [پ، مص مت] (۱) ویستل، لرې کول، کټ کول (۲) نا منظور ول (۳) بهر کول

**خارجونه:-** (خا+ر+ج+و+نه) [پ، حمص] (۱) ویستنه، لرې کونه، کټ کونه (۲) نا منظورونه (۳) بهر کونه

**خارجووُنکے**:- (خا+ر+ج+وُو+ن+کے) [پ، فاع، مذ، وا، ج: خارجووُنکي، مؤ: خارجووُنکې] (۱) ويستونکے، لرې کوونکے، کټ کوونکے، (۲) نا منظوروونکے، بهر کوونکے.

**خارجه**:- (خا+ر+جه) [ع، ص، مؤ] د بهر، بهرنے

**خارجه دفتر**:- (خارجه+د+ف+ت+ر) [اُر، اس مذ] د بهرنو چارو دفتر، فارن افس د يو ملك هغه دفتر چې په کښې د نور و ملکونو سره د تعلقاتو او معاملو فيصلې کيږي

**خارجه وزارت**:- (خارجه+و+زا+ر+ت) [اُر، اس، مذ] د بهرنو لارو چارو وزارت د بهر ملکونو سره د تعلقاتو ساتلو ذمه وار وزارت، فارن منسټري

**خارجه وزير**:- (خارجه+و+زي+ر) [اُر، اس مذ، وا+ج: خارجه وزيران] د بهرنو چارو وزير، فارن منسټر

**خارجي**:- (خا+ر+جي) [ع، اس، مذ، وا، ج: خارجيان] (۱) بهرنے، د بل ملك (۳) د مسلمانانو هغه فرقه چې حضرت علي [كرم الله وجهه] خليفه نۀ مني

زۀ خوشحال خټک پـه حُب دا اهـل بيتـو
خـــاري او رافضـــي کـــړم اخراجـــي

**خارجېدل**:- (خا+ر+جې+د+ل) [پ، مص لا] (۱) ويستلے کېدل، لرې کېدل (۲) نا منظورېدل (۳) بهر کېدل

**خارجېدنه**:- (خا+ر+جې+د+نه) [پ، حمص] (۱) ويستلے کېدنه، لرې کېدنه (۲) نا منظورېدنه (۳) بهر کېدنه، خارجېدۀ

**خارجېدوُنکے**:- (خا+ر+جې+دو+ن+کے) [پ، مف مذ، وا، ج: خارجېدوُنکي، مؤ: خارجېدوُنکې] (۱) ويستلے کېدوُنکے، لرې کېدوُنکے (۲) نا منظورېدوُنکے (۳) بهر کېدوُنکے

**خارجېدۀ**:- (خا+ر+جې+ده) [پ، حمص] و ـــــ خارجېدنه

**خارخسک**:- (خار+خ+س+ك) [فا، اس، مذ] [مال کنډې، يو بوټے چې په دېسي طب کښې د دوا په ډول استعمالېږي

**خـارخوټې**:- (خـار+خو+ټې) [اَف: پ(قـاموس)، اس، مـؤ] خـارخوړې، ول، گرداب، غورندې،

**خـارخوړې**:- (خـار+خو+ړې) [اَف: پ(قـاموس) اس، مـؤ] (۱) وخـارخوټې (۲) ورکوټې کنده

**خاردار**:- (خار+دا+ر) [فا، ص، مذ، مؤ، وا: خارداره، ج: خارداري] ازغـن، اغزين، اغزينك

**خارښ**:- (خا+رش يا خا+ر+خ) [پ، اس، مذ] (۱) خارښت، سپوږے، خارش، تيخور، سپومے، سپم (۲) عادت (۳) د څرمنې يو مرض

**خارښت**:- (خا+ر+ش+ت يا خا+ر+خ+ت) [پ، اس، مذ] خارښ کول: اص، تيخور کول، د بيمارۍ له کبله څرمن تيخورېدل

د دنيا مينه پـــه مثل د خـــارښت ده
هېڅوک نۀ وينم خالي له دې خارښت    خوشحال

ـــ **کېدل** اص، تيخورېدل، تختېدل، پـه خارښـت را اَرول: اص، عـادت کول، بد عمله کوله

**خارښـــتمن**:- (خارښـــت+م+ن) [پ، اس ص، مـذ، مـؤ، وا: کارښـــتمنه، ج: خارښتمنې] (۱) خارښتي، پمن (۲) عادي (۳) بد عمله، بې حيا

**خارښتول**:- (خا+ر+ش يا رَ+خ+ت+و+ل) [پ، مص مت] تيخورونه، تختونه، گرونه

**خارښـــتووُنکے**:- (خـا+ر+ش+ يـا ر+خ+ت+ وُو+ن+کـے) [پ، فـا، مـذ، وا، ج: خارښـــتووُنکي، مـــؤ: خارښـــتووُنکې] تيخور وُونکـــے، تختـــووُنکے، گرووُنکے.

**خارښـتي**:- (خـا+ر+ش يـا رَ+خ+تـي) [پ اس ص، مـذ، وا، ج: خارښـتيان] خارښي (۱) د خارښت په مرض بيمار پمن (۲) بد عمله، بې حيا، کُوني (۳) عادي په څۀ عادت خارښتمن

دا دنيا خـــارښتي بـــزه ده پـــه ساتل ئې څۀ مزدوه
شپون ئې اوشرې د بزونه چې ئې پوهه شي له خارښت    خوشحال

**خارښتېدل**:- (خا+ر+ش يا ر+خ+تې+د+ل) [پ، مص لا] تيخورېدل، تختېدل، گرېدل

**خارښتېدنه**:- (خا+ر+ش يا ر+خ+تې+د+نه) [پ حمص] تيخورېدنه، تختېدنه، گرېدنه، خارښتېده

**خارښـتېدوُنکے**:- (خـا+ر+ش يـا رَ+خ+تـې+دو+ن+کے) پـپ، مـف، مـذ، وا، ج: خارښـــتېدونکي مـــؤ: خارښـــتېدوُنکې] تيخوربـــدوُنکے تختېـــدوُنکے، گرېدوُنکې

**خارښي**:- (خا+ر+شي يا خي) [پ، اس] وخارښتي

**خارښـــېدوُنکے**:- (خا+ر+شـــې يـــا خـــې+دو+ن+کے) [پ، مـــف، مـــذ، وا، ج: خارښـــېدوُنکي، ۋ، خارښـــېدوُنکې] تختېـــدوُنکے، تيخوربـــدوُنکے خارښتېدوُنکے، گرېدوُنکے.

**خارو**:- (خا+رو) [پ، اس، مؤ، وا، ج: خاروگانې] (۱) مينا، خارونې، ښېرکه (۲) د چرګ پرپره، چرګ خولك (۳) معشوقه

سترگې دې سرې لکه گلونه خارو
د اسمان ستـــورې دې خالنه خارو    سېد احمد

**خارونې**:- (خا+رو+نې) [پ، اس+ مؤ] مينا، ښېرکه

**خـــاړپوڅې**:- (خا+ړ+پو+ت+ســې) [پ، اس، مؤ]خــاپوړې کــول: اص، پـــه خاړپوڅو تلل، خاپوړې کول، په خاړپوڅو تلل: اص، وـــخاړپوڅې کول

**خاړيگز**:- (خا+ړي+گ+ز) [پ (گن)، اس، مذ، وا، ج: خاړيگزونه]بدمـه، تـور دُوند، سخته سيلۍ چې دوره هم په کښې وي

**خـــازن**:- (خـــا+ز+ن) [ع، اس، مـــذ ش، وا، ج: خازنـــان، (مـــؤ، وا: خازنـــه، ج:خازنې] خزانچي

**خازه**:- (خا+زه) [پ، اس، مؤ، وا، ج: خازې](۱) مړاوې، جينجن، مړڅپن (۲) د جنډې يا ببـرغ اُوږد نبـغ لـرګے (۳) پوټسـکے، بکسـکے، لـړڅيـز (۳) د خاورو پلنې خښتې چې د لحد د پاسه لګولے شي (۵) د کاڼي هغـه اُوږده او پلنه تختۍ چې د قبر سر او پښو ته لګولې شي -

چې خازې شنې مې په قبر وي ولاړې
که غلام مې شم راځي توکۍ پرې لاړې    غني خان

ـــــ **کېـــدل**: - اص، (۱) مـــراوې کېـــدل، مـــړڅپن کېـــدل، جينجنېـــدل، (۲) مړکېدل، تخته کېدل يعني څملاستل

**خـازه تـوب**:- (خـازه+تو+ب) [پ، اس، مـذ]خازه والے، جينجنتـوب، مـړڅپن توب، مړاويتوب

**خازه والے**:- (خازه+وا+ لے) [پ، اس، مذ]وـ خازه توب

**خـــازې**:- (خـــا+ز+ئي) [پ(ب، خ)، اس، مـــؤ] د اوبـــو ژور کـــوهے چـــې پاخـــۀ دېوالونه نۀ لري

**خـاږخـاږ**:- (خا+ژ+خا+ژ يـا خـا+گ+ خـا+گ) [اَف: پ(قـاموس)، اس، مـذ] خشخاش

**خاسـه**:- (خا+سـه) [پ، اس، مـؤ، وا، ج: خاصـې]د لټـې نـه لـږه نـرۍ او ارزان بيعه سپينه کپړه

ټپه:- زما به هله اُرمان درشي
چې مې په سپينه خاسه زنه اوتړينه!

**خاشاک**:- (خا+شاک) [پ، اس، مذ]خشاک، د اوربلولو وابنهٔ لرګي۔

خشاک د اوربـــلـــولـــو وابنـهٔ لـرګي
چې دا هسې لوئے مېلمه تهٔ کور ته بیائي    رحمان بابا

**خاشـه**:- (خا+شـه) [پ، اس، مؤ، وا، ج: خاشې](۱) خزلـه (۲) خسـنے (۳) لـږ ثیـز، پُوټې (۴) خسـک، د ماشـومانو د خېټې یـا د سترګو بیمـاري (۵) د غوښې ټوټه نهٔ اوچتول: اص ، (۱) خسنے نهٔ اُوچتول (۲) لږ شان ثیز هم نهٔ اُوچتـول ، پُوټسکے هـم نـهٔ اخسـتل (۳) خاشـه نـهٔ پورتـه کـول، بېکـاره کښېناستل، هېڅ کار نهٔ کول، دا خاشه پردې نهٔ ایښوول

تئې درځې د غرو سروله
موږ به هم درشو خاشوله    کاکړۍ لنډۍ

نهٔ پورته کول: اص ، و  کاشه نهٔ اوچتول

**خاشې ماتول**: اص ، په کار کښې عېب راویستل

**دا خاشه پردې نهٔ ایښوول**: اص ، و  خاشه نهٔ اوچتول

**خاشـه پنـا**:- (خاشـه+پ+نا) [اَف: پ(قـاموس) اِس ص، مـذ] ډېـر شُـوم،لوے کنجوس

**خاشه کښ**:- (خاشـه+ک+ش یـا ک+خ) [اَف: پ (قـاموس) ، اِس ص، مـذ] خس کش، هغه طبیب چې د خاشې خسک وُباسي

**خاص**:- (خا+ص) [ع، ص، مذ، وا، ج: خاصان، مؤ، وا: خاصه، ج: خاصې] (۱) د عـام ضـد (۲) فقـط، صـرف (۳) ذاتـي، خپـل ځـاني،نجي (۴) ښـهٔ، غوره (۵) کوښ، د خوښې، د مینې۔

خاص بنده د خدا ے هغه ګڼه خوشحال
چې د ځـان پـه معرفـت ئـې سـرفراز کـا

**خاص و عام**:- (خاص+و+عا+م) [فاتر، اِس، ج] هر څوک، ټول وګړي، ښځې نر، لوے واړه

کـم بـه نـهٔ شي لکه غر تهٔ په لوئیې کښې
که تعظیم ته ایستاده د خاص و عام شې    شیدا

**خاصه**:- (خا+صه) [ع، اس، مؤ](۱) عادت، خوئي، (۲) کاسه سپینه کپړه

**خاصـه دار**:- (خاصـه+دا+ر) [پ، اس، مـذ، وا، ج: خاصـه داران] پـه اېجنسـو کښې یـو بې قاعـده فـوځ چې د پولیټیکـل لاندې کـار کـوي او د سـړکو وغېره حفاظت کوي (۲) بېکاره، بېګاري

**خاصـه داري**:- (خاصـه+دا+ري) [پ، اس، مـؤ، وا، ج: خاصـه دارۍ] (۱) د خاصه دارۍ کار (۲) بېګار، د کار نه ځان خلاصونه

**خاصیت**:- (خا+صي+ې+ت) [ع، اس، مـذ، وا ج: خاصـیتونه](۱) اثـر، تـاثر (۲) طبیعت، خوي، خصلت، (۳) صفت، وصف

**خاطر**:- (خا+ط+ر) [ع، اس، مذ](۱) زړهٔ (۲) خیال، پام (۳) مرضي (۴) لحاظ، زړهٔ سـاتنه (۵) مـدار (۲) طبیعـت، مـزاج، طبـع (۷) د پـاره، لـه پـاره (۸) طرفداري، ملګرتیا (۹) د پښتو ژبې د یو مشهور شاعر مصري خان تخلص،    خاطر اپریدي

پـه خـاطر کښې مې بل حُب محبت نشته
پکښې ځاے دے د زړهٔ خیال د ښو یارانو

خاطره یار دې په خپبر کښې اوسي
تـولـــه دره د سپېلنو ډکـه شه    خوشحال

**ـــ بده ول**: اص ، زړهٔ خفه کول، ناراضه کول

**ـــ بدېدل**: اص، زړهٔ خفه کېدل، ناراضه کېدل

**ـــ پرې ګرفتاره کېدل**: اص ، په زړهٔ کښې مینه پېدا کېدل، د عشق په جال کښې اولوول کېدل

چې د هر سړي خاطر پرې ګرفتار دے
اول زلفې دو یم خـال دریم رخسار دے    قلندر اَفریدے

**ـــ پرېشانېدل**: اص ، زړهٔ خفه کېدل، دلګیر کېدل

**ـــ تسلي ساتل**: اص ، (۱) فکر و سواس نهٔ کول، خاطر جمع ساتل (۲) د چا زړهٔ ساتل

**ـــ تورېدل** اص ، زړهٔ تورېدل، بد عمله کېدل

پـــه ســن راغـلـم تر پنځوسوه
پـــه غفلت کښې یـم تـر اوسه
وېښتهٔ سپین خاطر مې تور شهٔ
بـد خصـلت مې کلـه نور شه    عبدالقادر خان خټک

**ـــ ته رسېدل**: اص ، (۱) په خبره پوهېدل (۲) بد ګماني پېدا کېدل

چېرې نه چې دې څهٔ ورسي خاطر ته
کــه لــه چا سره مې تشلے تسلے وي    خوشحال

**ـــ جمع لرل**: اص ، تسلي لرل، غم فکر نهٔ کول

**ـــ خلاصول**: اص ، زړهٔ ازادول، ځان خلاصول

هر عمل د خدا ے د پاره په اخلاص کړه
د مخلوق له پرستشه خاطر خلاص کړه    حمید

**خوږول**: اص . زړهٔ خوږل، سر خوږول، غم فکر کول

بس که علیخانه خوږوے پرې خاطر څهٔ له
بحث بې اندازه دے بسیار د خوږو زړونو

**ـــ خیرنېدل**: اص، زړهٔ بدېدل، طبیعت خرېدل، مرور کېدل

که ئې مخ تر پُنبے سپین وي په تا څهٔ شو
که خاطر دې ترې خیرن شي مه ئې وینه    علي خان

**ـــ درنول**: اص ، مرورېدل، ناراضه کېدل، خفه کېدل

**ـــ درنېدل**: اص ، مرورېدل، ناراضه کېدل، خفه کېدل، ګیله من کېدل

**ـــ غوځول**: اص ، زړهٔ خوږول، زړهٔ دړدول، زړهٔ ټوټې ټوټې کول

کــه ئې ولې کــړې زمـــا د خاطر غوځې
ستا د سترګو تورې هم کړې پرې خدا ے پخې    علي خان

**ـــ فراخ کول**: اص ، خوشحالول، زړهٔ ته خوشي رسول

پــه خندا خندا راځه غاړه غاړۍ شه
د خپل یار خاطر له غمه نهٔ فراخ کړه    خوشحال

**ـــ فراخ کېدل**: اص ، خوشحالېدل، زړهٔ ته خوشي رسېدل

**ـــ کول**: اص ، دارمدار کول، عزت کول، لحاظ کول ، خیال ساتل، په درنه سترګه کتل

زهٔ خاطر دې نور خاطر کولے نهٔ شم
اے رقیبه که پوهېږې نور سړے شه

**ـــ کېدل**: اص ، دارمدار کېدل، عزت کېدل، لحاظ کېدل، خیال ساتلے کېدل

**ـــ ګرانېدل**: اص، د چا عزت او لحاظ ساتلے کېدل

ټپه:    خاطر دې ډېر راباندې ګران دے
زهٔ په ملاله کوکۍ لاس کله پرېږدمه!

**ـــ وړل**: اص ، د چا لحاظ ساتل،

**په خاطر اوړېدل**: اِص په زړهٔ ورېدل، یادېدل، په یاد کېدل، یاد تـه راتلل، د

څۀ څيز ارمان کول
هغه چـارې چې زمـا پـه خاطر اوري
شېخ ئې نۀ ويني په خوب ملا په توري    ملا حسن اسحاق زے

**په خاطر داغ کېښول:** اِص ، زړۀ سول، زړه چول
کــه پـــه دا دورې ګـــورې هغـه زۀ يم
چې مې داغ په خاطر ايښے د اورنګ دے    خوشحال

**پـه خـاطر سـياهي پربوتـل:** اِص ، زړۀ خفـه کېـدل، زهيرېـدل، زړۀ تـه درد رسېدل، زړۀ تورېدل
که مې پربوتۀ سياهي په خاطر باندې
بې لــه مخــه د دلـــدار را رڼا مه شه    حميد

**په خاطر کښې راتلل:** اِص . يادېدل، د چا پـه يـاد کښـې راتلـل، پـه زړۀ کېدل، په زړۀ کښې تېرېدل

**په خوا خاطر کښې ګرځېدل:** اِص ، پـه زړۀ کښـې راتلـل، هر وخت يـاد پـاتې کېدل

**په خوا خاطر کښې نۀ راتلل:** اص ، (۱) په خاطر کښې نۀ راتلل، پـه زړۀ کښـې نۀ راتلل، د څۀ کار د کېدلو په خيال کښې هم نۀ راتلل (۲) د چا څۀ پروا نۀ لرل ، د چا نه څۀ يره نۀ کېدل

**د خاطر تسلي کېدل:** اِص ، د زړۀ تسلي کېدل، زړۀ ته ارام او سړيخي رسېدل
تسلي مې د خاطر په نور چا نۀ شي
بې لـــه تـانه او زما قطب الاقطابه    خواجه محمد بنګش

**د خاطر نه وتل:** اِص ، هېرېدل، ياد نۀ پاتې کېدل، د خاطره وتل

**د خاطره وتل:** اِص ، و د خاطر نه وتل

**سنګين خاطر:** اِص ، سخت زړۀ ، ناترسه زړګے،
هسې کوډې عاشقۍ رابانـدې اوکړې
چې سنګين خاطر مې نرم شو تر مومه    رحمان بابا

**لېونے خاطر:** اِص ، پاګل زړۀ ، بې صبره زړۀ
پـــه مطلب د لېوني خاطر حېران يم
نۀ پوهېږم چې له تا د څۀ طالب دے    حميد

**له خاطره فراموش کېدل :** اص ، هېرېدل، د خاطر نه وتل
د مـــردانـو د خپل شرم کاروبار دے
نور ئې هر څۀ له خاطره فراموش دي    خوشحال

**خـاطر تېـز:-** (خـاطر+تې+ز) [پ(خ)، اِس ص، مـذ ، وا (مؤ، وا: خـاطر تېـزه، ج: خاطر تېزې)] څان ته مغرور، غاوره، په څان غلط

**خاطر تېزي:-** (خـاطر+تې+زي)[پ، اِس، مؤ] غـاوري، مغـروري، پـه څـان غلط والے

**خـاطر داري:-** (خـاطر+دا+ري) [فـا، اِس، مؤ، وا ج: خـاطر داری] عـزت مـدار کونه، لحاظ ساتنه

**خاطر مدار:-** (خاطر+م+دا+ر) [پ، اِس، مذ] دار مدار ، عزت

**کول:** اِص ، دارمدار کول، عزت کول

**کېدل:** اِص ، دارمدار کېدل، عزت کېدل

**خاقـان:-** (خا+قـا+ن) [تـر ، Hakon، اِس، مـذ] (۱) بادشـاه (۲) د چـين او د ترکستان د بادشاهانو پخوانے لقب
معشوقې وتـــه بـــادشاه لکـه بنده شي
که قيصر دے که خاقان دے که فغفور    خوشحال

**خاک:-**(خا+ک)(فا ـ اس ـ مذ) (۱) خاوره ، ختِه ، دوړه ـ (۲) زمکه
تر هـلال ئې صدقـه شم تـر بـلال
په اخلاص يم زۀ د دوي د تلې خاک    خوشحال
چې خبره د پستۍ د بلنـــدۍ شي
په لوېئ لکه اسمان په پستۍ خاک    خوشحال

**خاکروب:-** (خاك+رو+ب) [فا: اس (مذ ـ وا) ج خاکروبان ، (مؤ ـ وا: خاکروبه ، ج:خاکروبې)] کسب، کار، پيشه
زۀ رحمان د محمد (ص) د در خاکروب يم
که مې خدا ے نۀ که له دې دره جدا

**خاکسار:-** (خاك+سا+ر) [فا: اس اِس، مذ ، وا ـ ج خاکساران ، (مؤ وا: خساره ، ـ ج: خاکسارې)] کسب، کار، پيشه
(۱) د خاورو پـه شـان ، (۲) غريـب ، فقيـر ، عـاجز ، خـاورې ، (۳) د کسـر نفسي په ډول ـ
د خپل څان د پاره استعمالولے
په سپېرو ايرو لړلي خاکساران    خوشحال

**خاکسـاري:-** (خاك+سـا+ري) [فـا: اس ، مـؤ وا ، ج: خاکسـاری] عـاجزي ، غريبي، کمزوري
څکه ئې غټان د در د خاورو خاکساري کا
هـــر چې دلته وورړوي هاغه څا ے لوئے شي    علي خان

**خاکستر:-** (خـاك+س+س+ت+ر) [فـا) اِس، مـذ] ايـرې ايـرې ، خـاورې ايـرې ، ببخي، سوځېدل
چې دانه د خرمن اخلم خاکستر شي
لکه برق لرم شور پـــه پر و بال کښې    کاظم خان شېدا

**خـاک بنـيوري:-** (خاك+شـو يـا خـو+ري) [اَف: پ (قـاموس) اِس، مـؤ] کسـب، کار، پيشه

**خاک بنوري:** کول: اِص ،

**خـاکلې:-** (خـا+ك+لې) [اَف: پ(قـاموس) ، ص، مذ] بـدرنګ ، سـخا ، بـد شکله، ناولے

**خاکـه:-** (خا+کـه) [فـا ، اِس، مـؤ، وا ، ج: خـاکې] (۱) نقشـه، تصـوير، کچه نقشـه (۲) د وريـژو مبـده، د کـاني مبـده مـاتې ګـوډې وريـژې (۳) د غمي ريزه، (۴) بې کاره څيز

**خـاکي:-** (خـا+کي) [فـا ، اِس ص] (۱) خـاورين، د ختـو نـه جـوړ، پـه ختـو لـړلے (۲) خړ، خړنګے، خړبخن

**خـاکي:-** (خـا+کي) [اَف: پ(قـاموس) اِس، مـؤ] (۱) د شـادو يـا بيـزو د نيولـو ډوغل (۲) د چرګانو په خاورو کښې لوبې (۳) د خړېږي يو قسم

**خاکي اوبه:** اِص ، خاکي اګۍ ، هغه کچه ها يا اګۍ چې د چرګې سره چرګ نۀ وي يو څا ے شوې او وائې چوي، داسې اګۍ نـه بچي نۀ راوزي، پـه عـام اصطلاح کښې کمزوري شان بچي ته وئيلے شي

**خاکي:-** (خا+کي) [پ، اس ص، مذ]خاورين، د خاورو نه جوړ ـ
زۀ دې پېژنم په اصل کښې خاکي ئې
څان به څو څنډې په ګـوتـه له ترابه    رحمان بابا

**خـاکې:-** (خـا+کې) [اَف: پ(قـاموس) ، اِس، مـذ] (۱) د ماشـومانو يـوه لوبـه (۲) کنده، ډوغاله

**خـاګلې:-** (خـا+ګ+لې) [اَف: پ(قـاموس) ص، مـذ] (۱) ښـاغلے ، درونـد (۲) ښکلې، ښائسته،

**خـال:-** (خـا+ل) [ع، اِس، مـذ ، وا ، ج: خالونـه) (۱) داغ، ټکے، تـپے ، زخـه (۲) د ښکلا د پاره په مخ، تندي يا زنه جوړه کړې غونډه شان شنه نخښـه (۳) د

زناناؤ یو کالے چې په تندي ئې راڅوړند کوي، ټیکه (۴) غابنور، منداؤ، ماله، هغه د لرګي تخته چې د مزکې د اوارولو د پاره په قلبې پسې تړلې شي (۵) د کونترې یو قسم (۲) د پرهر نخښه (۷) د جوارۍ په دانه د یو ټکي نخښه چې د بېلات کور شمار بېږي

د اتیا زره کتابه مونږ دا یو ټکے زده کړے

که تک تور وي هم ښائسته شي چې د ستا د زنې خال شي

کـه ئې دلته خال په زنه باندې وران شي

په ختن کښې به بازار شي وران د مښکو علي خان

**خال اینبول:** اص ، خال کېښودل، خال جوړول، خال لګول، خالونه ږدل، د ښائست دپاره د رنجو یاد نیل ټکے په زنه یا تندي لګول

**ــ تازه کول:** اِص ، خال اینبول، ځان ښکلے کول

پخواني د زړۀ داغونه زما خېر دے

د زړۀ سره کړه تازه په جبین خال بیا (حمزه شنواري)

**ــ جوړول:** اص ، وـــ خال اینبول

**ــ کېښودل:** اِص ، وــــ خال اینبول

زۀ نجیب دې په کمند د زلفو بند کړم

چې بیان کښې دې دانه کښېښوده خال

**ــ لګول:** اص ، وــــ خال اینبول

**خالونه ږدل:** اِص خال اینبول

شنۀ خالونه چې د پاسه پر جبین ږدي

دا زمـا پـه زړۀ داغونه اتشین ږدي پیر محمد کاکړ

**ــ لګول:** اص ، خالونه وهل، متې وهل، د غټو دانو، کوي (کېوي) یا نینیو نه د ځان بچ ساتلو د پاره ټیکه لګول

**ــ وهل:** اِص ، و خالونه لګول

هے هے د یــار صورت لـکـه ګلونه

چې وهلي ئې په مخ دي شنۀ خالونه احمد شاه ابدالي

**خال چیني:-** (خال+چي+ني) [اَف: پ(قاموس) اس] یو قسم انګور چې په قندهار کښې کېږي ، غنچې ئې غټې او دانې په کښې ډېرې زیاتې وي

**خال خال:-** (خال+خال) [پ، اص] لږ لږ، کم کم، ځینې ځینې، ځاے په ځاے

**خالص:-** (خا+ل+ص) [ع، ص، مذ ، مؤ ، وا: خالصه] (۱) سُوچه، پاکیزه، صفا، سُتره (۲) کره، اصلي، چې ګډون په کښې نۀ وي (۳) ډېر په خلوص، په ښۀ نیت، خاص طور سره

که یــار جــام د میني ورکـانـدي خالص

روغ هوښیار ، شیخ به ابتر کاندي خالص علي خان

**خالصـه:-** (خا+ل+صـه) ] ع، ص، مؤ] (۱) سـرکاري زمکـه (۲) د سکانو فـوځ (۳) سکهـسردار (۴) د پېښور سره نزدې یو اباده علاقـه متـل: باران په تیراه اوشو ، خرۀ ئې د خالصې یوړل۔

**خالق:-** (خا+ل+ق) [ع، اِس فـاع، مـذ] (۱) پیدا کـوونکے (۲) الله پـاک، خدا ے تعالی

اے خالق د نیمګړو بسنده

د هــر چا د مقاصدو دهنده علي خان

**خالک:-** (خا+ل+ک) [پ (صوابي) اس مذ] قمیص، خلکه

**خالي:-** (خا+لي) [پ، اس ص] (۱) تش (۲) شاړ، ویجاړ، غېر اباد (۳) صرف، محض (۴) یـواځې، ځانتـه (۵) بـې روزګار، خوشـې (۲) فـارغ، لیـه (۷) سنیچر، هفته، خیالي (۸) د ورکوټي اختر د میاشتې نه پس راتلونکي میاشت، ذي القعده۔

که مې لاس لکه دریاب خالي لیدۀ شي

د ټېر دنتـــه ډک پـــه دُر ګــوهــر یم علي خان

**ــ پاتې کېدل:** اص ، هېڅ نۀ پاتې کېدل، هر څۀ دلاسه وتل،

څۀ عجبه زمانه عجب ئې کار شۀ

لـه وفـانه ئې خالي پاتې بازر شۀ علي خان

**ــ تلل:** اص ، (۱) تش لاس تلل (۲) یواځې تلل (۳) وار یا ډز خطا کېدل (۴) تشه حاضري کول ایله سر ورځرګندول

**ــ جېب:** اص ، تش جېب ، تش لاس، خالي لاس، بې پیسې بې ټکې

**ــ خولي:** اِص ، صرف، محض، هسې، بې فائدې، تشې ډُوزې

**ــ خېټه:** اِص ، تش نس، وږے

**ــ کول:** اِص ، (۱) تشول (۲) ځاے پرېښول (۳) د چانه ټولې پیسې اخستل

**ــ کېدل:** اِص ، (۱) تشېدل (۲) ځاے پرېښـولے کېدل، (۳) د چا نـه ټولې پیسې اخستلې کېدل

**ــ لاس:** اِص ، (۱) تش لاس، غریب، خوار (۲) بې وسلې

**خام:-** (خا+م) [فا، اِس ص] (۱) اُوم، کچه چې پوخ نۀ وي (۲) ناتجربه کار

چې بندي به ترې ځان خلاص کړي په اسانه

هسې مــــه ګڼــه د یـــار زلفې خـام خم علي خان

**خامتـا:-** (خا+م+تـا) [پ، اس، مؤ، واحد، ج: خامتاګانې] خامتـا کـدر، ارزان بیعه، سپنهسینه کپړه

**خامخا:-** (خا+م+خا) [پ، فا: خواه مخواه، کلمه] اورومرو، ضرور

خامخـا بــه صـبر خــوښ مفلـس حمیـد کـا

چـې خوبـانو ددې وخـت کـړل سـیم و زر خــوښ

**خــامچې:-** (خـام+چې) [اَف، پ (قــاموس) اِس مـؤ] خمچعی، کچنـه ګوتـه، چیچنه ګوته

**خامـک:-** (خـا+م+ک) [اَف، پ(قـاموس) اِس مـذ] (۱) نـازک انګـور، نرمـه مېـوه (۲) وریښمینه کشیده،

سپین پرتوګ د خامک خُلې

په پښو کښې بل اُورونه وړې کاکړۍ لنډۍ

**ــ کول:** (اف) اص ، انګور شین کېدل

**ــ وهل:** (اف) اِص ، د انګور ځانګې پرېکول

**خــاموش:-** (خـا+مو+ش) [فـا، ص، مـذ (مؤ، وا: خاموشـه ج: خاموشـې] (۱) چپ، غلے، پټه خوله (۲) بې اوازه (۳) مړ

ستـا غمــــونـــو بې طـاقتـــه کـه دلبره

چــې نجیب سر په زنګون ناست دے خاموش نجیب

**خاموشـي:-** (خا+مو+شـي) [فـا، اِس، مؤ] چپـه چپیـا، چپـه چپـائي، چپـوالے، چېرته چې هېڅ اواز نۀ خېژي

پټ وي طوفانونه د شاعر په خاموشۍ کښې

مــه شــه پرې غلط چچې بس خبرې جوړوي حمزه شنواري

**خـامي:-** (خا+مي) [فا، اِس، مـؤ] (۱) کچـه والے، اوم والے (۲) کمـزوري، ناتجربه کاري

نور د عشق په اور کښې پوخ یم خو شرمېږم

خــو دا نخښـه راکښې پـاتې د خــامۍ ده علي خان

حمزه څواني زمـــا غـــزل اوخوره

خامي مې دا ده چې غزل نۀ شومه

**خان:-** (خا+ن) [تُر(Han) اِس ص، مذ ، وا ج: خانان، خنانان] (۱) مشر، سردار، عزتمند، (۲) پـه پښتـنو کښـې د عـزت یـو خطـاب (۳) بختـور، مالـدار (۴) سخي (۵) د پښتنو د نومونو لاحقه کله کله د سابقې په ډول هم راشي (۲) قلار او شریف ماشوم ته د مینې له کبله وئیلے شي

چې ګټيل خورول بخښل کا ځوان هغه
چــې تــوره لــري د توري خان هغه خوشحال

**خان پـه توتي:** (بنو/اص) ، د ماشومانو لوبـه، خان خان پـه تتـي، خـان خـان مـه توتي،

**خان په تېتي:** (خل) اص ، و خان خان په توتي

**خان مه توتي:** (ا.خ) اَص ، و خان خان په توتي

**خان بهادر:** - (خان+ب، ها+د+ر) [فا ، اس ص مذ ، وا ج: خان بهادران] د عزت سرکاري خطاب چې د انګرېزانو په وخت کېنبې بـه خـاص خـاص کسـانو ته ورکولـے شو

**خـان بهـادري:** - (خـان+ب+هـا+د+ري) [پ، اِس، مـؤ] (۱) د خـان بهـادر مرتبـه (۲) مشري، معتبري

**خانتما:** - (خـا+ن+ت+مـا) [اَف: پ(قـاموس) اِس] مغـرور، کبـرجن، بـې پـروا ، لوے نظري،

**ــ تلل:** (اَف) اص ، د کبر او مغرورتيا په قدم تلل، هواګير تلل

**ــ کښېښتل:** (اَف) اَص ، مغـرور او کبـرجن کښېناسـتل، ډېر کښېناسـتل، د چا سره د کبره خبرې نۀ کول

**خانتمـــاتوب:** - (خانتمـــا+تو+ب)[اَف: پ (قـــاموس) اِس، مـــذ] کبـــر، لـــوئي، مغروري

**خانجـے:** - (خـان+جې)[اَف: پ(قـاموس) اِس مـذ] ، شـهوت، هـوس، د شـهوت خارښت، ،

**ــ پورته کېدل:** اص) زيات شهوت راولاړېدل، د شـهوت نـه تنګېـدل، خانجـے پـه ښور راتلل، خانجے ښورېدل

**په ښور راتلل:** اص ، و ـــــ خانجے پورته کېدل

**ــ ښورېدل**(اَف) اَص، و خانجے پورته کېدل

**خانچيے:** - (خان+ن+چ+ن+ړے) [اَف: پ(قاموس) اِس، مذ]توئې يـا وېلـې شـوې ژاوله، چيختاړ

**ــ کول:** (اَف) اص ، ژاوله تويول، چيختاړول

**ــ کېدل:** (اف) اص، ژاوله توئېدل، چيختاړېدل

**خانخېل:** - (خان+خې+ل) [پ، اِس ص] د خان د کور نـه، د خان د خاندان نـه د عزتمنې کورنۍ نه

**خاندان:** - (خان+دا+ن) [فا ، اس، مذ ، وا ، ج: خاندانُونه]کورنۍ، قبيله، نسل

**خانداني:** - (خـان+دا+ني) [فـا ، اِس ص](۱) کورنـے لکـه خانداني جائيـداد (۲) د ښې او شريفې کورنۍ نه، د عزتمن کور غړے، د ښۀ نسل

**خاندک:** - (خان+د+ك) [پ(وز+ب خ) ، اس مذ] دېوال، خندك

**ــ ته درول:** (وز) اص ، دېوال ته اُودرول، د وادۀ ښادۍ يو رسم

**ــ ته دربدل:** اص ، دېوال ته اُودرېدل، د وادۀ يو رسم

**خاندور:** - (خان+دو+ر) [اَف: پ(قاموس) اِس، مذ] بل اور، سُور اور

**خانړې:** - (خا+ن+ړې) [اَف: پ(قاموس) اِس، مذ] منړك

**خانزاده:** - (خان+زا+ده) [فا ، اِس ص، مذ ، وا ، ج: خانزادګان] د خان زوے

**خانسامه:** - (خان+سا+مه) [پ، فـا: خانسـامان اس، مـذ ، وا ، ج: خانسـامه ګـان] باورچي، اشپن، ټيکاله پخوونکے، خدمتګار

**خانســـامتوب:** - (خان+ســـا+م+تو+ب) [پ، اِس مـــذ] خانســـامه ګيـــري، باورچيتوب، اشپزي، خدمتګري

**خانسامه ګيري:** - (خان+سا+مه+ګي+ري) [پ، اس، مؤ] و خانسامتوب

**خـان صـاحب:** - (خان+صـا+ح+ب) [فـا ، اس ص مـذ ، وا ، ج: خـان صـاحبان] د انګرېزانو د وخت د عزت يو خطاب

**خان صاحبي:** - (خان+صا+ح+بي) [پ، اِس ص، مـؤ] (۱) د خان صاحب مرتبـه (۲) معتبري

**خانقاه:** - (خا+ن+قا+ه) [فا ، اس، مؤ] (۱) زيارت ، مزار (۲) استانه

شال خور په اوړو وړے اَب و تاب له فرشتو وړے
زړونـــه پـــه اولجـو وړے راځې مسته له خانقاه خوشحال

زۀ په زعم د صوفي خراباتي يم
چې د مــکر ذکـر کا په خانقاه خوشحال

**خـانکورے:** - (خـان+کو+رے) [پ (سو)، اس ص مـذ ، وا ، ج: خـانکوري، (مـؤ: خانکورۍ)] د خانۍ د کور غړے

**خانګره:** - (خـا+ن+ګ+ره) [اَف: پ (قـاموس) اِس، مـذ] خنګره، سي، بوسـکر، خانګړے

**خانګړے:** - (خـا+ن+ګ+ړے) [اَف؛ ب(قاموس) اِس، مذ]و ـــــ خانګره

**خانګي:** - (خا+ن+ګي) [فا ، ص](۱) د کور ، کورني (۲) ذاتي، خپل

**خـانلۍ:** - (خـا+ن+ل+ئي) [اَف: پ (قـاموس) اِس، مؤ]يـو بـوټے چـې د څنـاورو رنځور ځـاے پر داغلے شي

**خانم:** - (خا+ن+م) [فا ، (تر Hanim) اس، مؤ] (۱) بېګم، بي بي، د لوے کور زنانه، مېرمن، (۲) په ځينې ځايونو کښې د زنانو نوم سره راځي

ټپه: اول ډنګ ډانګي ياد ېدلې
زما په نوم شوې خانم جي دې بولي جُونه!

**خانواده:** - (خا+ن+وا+ده) [فا ، اِس، مؤ](۱) خاندان، کورنۍ (۲) د ښو خلقو د خاندان نه

**خانـه:** - (خا+نـه) [فـا ، اس، مـؤ ، وا ، ج: خانې](۱) کـور، مکـان (۲) پـه صندوق دننه ډبے شان (۳) د شطرنج د مُهرې کور، کوټکۍ

پـــه خـــانـــه کښې تواضع لکه کمان کړه
خونړيزي کوه که مرد ئې په مېدان کښې کاظم خان شيدا

**خانه بدوش:** - (خانه+ب+دو+ش) [فا ، اس ص، مذ ، وا ، ج: خانه بدوشان (مؤ، وا: خانه بدوشه، ج: خانه بدوشې] اکوچي، ګډواله، ګډبه، کډمار

**خانه بدوشي:** - (خانه+ب+دو+شي) [فا ، اس، مؤ] کډ ماري، کوچي توب

**خانـه برباد:** - (خانـه+ب+ر+با+د) [فـا ، اس ص مـذ ، (مـؤ، وا: خانـه بربـاده، ج: خانه بربادې] خانه خراب، تالاني، فضول خرڅ، کور بربادوُنکے

**خانـه برباد:** - (خانـه+ب+ر+با+د) [فـا ، اس ص مـذ ، (مـؤ، وا: خانـه بربـاده، ج: خانه بربادې]خانه خراب، تالاني، فضول خرڅ، کور بربادوُنکے

**خانه بربادي:** - (خانـه+ب+ر+با+دېي) [فـا ، اس، مـؤ] (۱) د کـور بربـادي، د کـور تباهي خونه ورانېدل (۲) تبر مرکېدل

**خانه پُري:** - (خانـه+پ+ري) [فـا ، اس، مـؤ](۱) د کـور ، کـورګې يـا د ځـاے ډکونـه (۲) د نقشـې ډکونـه (۳) څـۀ کـار پـه سـر سـري يـا رسـمي ډول کونه، د کار نه ځان خلاصونه

**خانه تلاشي:** - (خانـه+ت+لا+شي) [فا ، اس، مؤ] د کـور تلاشـي، د کـور لټـون، د غلا د مال د لټون په لړ کښې د چا کور کتنه

**خانه خانه:** - (خانـه+ خانه) [پ، ص]خانې خانې، سُوري سُوري، چار خانه،

**خانه خراب:** - (خانـه+خ+را+ب) [پ، اِس ص مـذ ، (مـؤ، وا: خانـه خرابـه، ج خانـه خرابې] و ـــــ خانه برباد

**خانـه داري:** - (خانـه+دا+ري) [فـا ، اس، مـؤ] ټبـرداري، د کـور کـار روزګـار او ماتې ګوډې، د کور ټك ټُوك

**خانه زاد:** - (خانه+زا+د) [فا ، اس ص، مذ](۱) په کور کښې پيدا ، په کور کښـې لوے شوے، (۲) کورنے (۳) غلام، نوکر، مرئے

**خانـه نشين:** - (خانـه+ن+شي+ن) [فـا ، اِس ص، مـذ ، وا ، ج: خانـه نشـينان

(مؤ، وا: خانه نشینه ج: خانه نشینې)په کور کښې ناست، ښځې په ګوټ کښې ناست

**خانې:-** (خا+نې) [پ، اس تصغیر، مذ، وا] خانې، کشرته د مینې په ډول وئیلې شي د اواز کولو په وخت ورته خانیه، یا خانې غږ کولې شي

**خاني:-** (خا+نې) [اس تصفیر، وا]و خانې

**خاني:-** (خا+نې) [پ، ص، مؤ](۱) مشري، لوې والې، درنښت، بهادري، (۲) د خانې خطاب

که خاني که ملکي که سلطاني ده

که ئې ګورې بېهوده سرګرداني ده          عبدالقادر خان ختک

**خانې:-** (خا+نې) [اَف: پ(قاموس)، اس، مذ] (د اتو سېرو برابر د تول یو کانې

**خاوال:-** (خا+وا+ل) [اَف: پ(قاموس)، اس مذ، وا، ج: خاوالُونه)(۱) په غر یا ببدیا کښې د بزوګړو شپول (۲) په دېوال یا د کمر خوا کښې ډوغاله

**خاورزي:-** (خا+و+ر+زي) [پ (وز)، ص مذ]خاورین، د خاورو نه جوړ

**خاورګاړې:-** (خا+و+ر+ګا+ړې) [اَف: پ (قاموس) اس، مذ]هغه کنده یا ډوغاله چې کُلالان د لوښو جوړوو د پاره خاوره ترې نه وړي

**خاورو تېل:-** (خا+و+رو+تې+ل) [پ، اس، مذ] هغه تېل چې د زمکې نه راوزي او د رڼا کولو د پاره بلولې شي

**خـاوره:-** (خـا+و+ره) [پ، اس، مـؤ، وا، ج: خـاورې](۱) کټـه، دُوړه، متـل: خاورې چې اخلې د لوې ډېران نه اخله (۲) زمکه (۳) وطن (۴) نسل (۵) سره (۲) سپک، بې قدره، هېڅ نه

**ــاچول:** اِص، (۱) په یو ځاې کښې کټه جمع کول، (۲) زمکې ته ډېراني یا کیمیائي سره ورکول

**ــاخستل:** اص، (۱) د څۀ ځاې نه خاوره اُوچتول، (۲) سره په بیعه اخستل

**ــڅټل:** اص، (۱) خاوره خوړل (۲) د غریبۍ ګزران کول، (۳) ډېره کنجوسي کول

**ــخوړول:** اص، وــــخاوره څټل

**ــدېوړول:** اص، (۱) خاوره لوستل یا نوستل، (۲) ګرد کول، ځاې نا پاکول

**ــښکلول:** اص، د مینې د کبله د وطن خاوره ښکلول

**ــکنستل:** اص، د ډوغل نه خاوره را اَیستل

**ــلونده ول:** اص، چیکړ جوړول، ګاره کول

**ــورکول:** اص، (۱) په څۀ پورې خاوره مړل، (۲) زمکې ته سره اچول (۳) چاته ملك ورکول،

**پرخاورو اچول:** اص، (۱) په خاورو غورزول (۲) نقصان ورکول، زیان ورسول

**پرخاورو لوېدل:** اص، (۱) په ختې غورزېدل، (۲) نقصان موندل، تاواني کېدل

**پر سر خاورې بادول:** اص، (۱) په سر ختې لوستل (۲) افسوس ارمان کول، (۳) شرمنده کېدل (۴) په سر خاورې اچول، په سر خاورې شندل

**په خاورو مړېدل:** اص، (۱) مړکېدل (۲) په هېڅ تسله نۀ کېدل، (۳) ډېر لالچ کول، زیات حرصناك یا اروا وړې کېدل

**په سر خاورې اچول:** اص، وـــ پر سر خاورې بادَول

**په سر خاورې شندل:** اص، و پر سرخاورې بادَول

**تورې خاورې:** اص، قبر، لحد

**خاورو ته اچول:** اص، (۱) په زمکه غورزول (۲) څۀ ځیز بربادول (۳) خاورو ته سپارل، په قبر کښې ښخول

**خاورو ته تلل:** اص، مړکېدل، د دنیا نه سفر کول، په قبر کښې ښخېدل

**خاورو ته سپارل:** اص، خاورو ته کوزول، قبر کښې ښخول

**خاورو ته ګوزول:** اص، وخاوروته سپارل

**خاورو سره خاورې کېدل:** اص، (۱) په خاورو کښې ګډوډ کېدل، خاورې کېدل (۲) مړکېدل، په قبر کښې ښخېدل

**خاورې اړول:** اص، ښخول، د خاورو لاندې کول، قبر ته سپارل

چې په دیدین پسې ئې مرم هغه به کله راځي

چې خاورې واړوي په ما هغه به هله راځي          شمس الزمان شمس

**خاورې ایرې کول:** اص، ختمول، بربادول، ضائع کول

**خاورې ایرې کېدل:** اص، (۱) ختمېدل، مړکېدل (۲) بربادېدل، ضائع کېدل

کاش که زۀ خاورې ایرې د ستا د در وې

چې قـدم دې همېشه زما پـه سر وې          رحمٰن بابا

**خاورې بادول:** اص، (۱) تش بوس بادول، بې فائدې کار کول (۲) هسې هېڅ بې هېڅۀ په هوا کښې خاورې اُوچتول

ځان مې ستا په در کښې خاورې کړلو

پـه سـر بـه خاورې بادومه ځمه          شمس الزمان شمس

**خاورې بادېدل:** اص، تش بُوس بادېدل، بې فائدې کار کېدل، عبث کار کېدل

**خاورې پر سر کېدل:** اص، (۱) سر په خاورو لړلې کېدل، (۲) بخت کوټه کېدل، قسمت خرابېدل

**خاورې په خولۀ پورې منښل:** اص، (۱) خولۀ په ختو لړل (۲) ځان عاجز او مسکین ظاهرول (۳) ځان سپکول

**خاورې په خولۀ کېدل:** اص، (۱) خاورې په نصیب کېدل، مړکېدل، (۲) هېڅ په لاس نۀ راتلل، څۀ ګټه وټه نۀ کېدل

تپه:          پتنګه خاورې دې په خُله شوې

ډیوۀ ته جوړ شول په فانوس کښې مکانونه!

**خاورې په نصیب کېدل:** اص، وــــ خاورې په خولۀ کېدل

**خاورې تېل:** اص، (۱) د خاورو لبو ورکول (۲) د خاورو ابادي کول (۳) کچه کار کول

**خاورې چاڼول:** اص، (۱) خاورې غلبېل کول (۲) ورك ځیز لټول

**خاورې څټل:** اص، (۱) خاورې خوړل (۲) خواري غریبي کول (۳) هېڅ په لاس نۀ راتلل

**خاورې ختې کول:** اص، د خاورو مزدوري کول، خواري مزدوري کول

**خاورې خوړل:** اص، و خاورې څټل

**خاورې کول:** اص، (۱) د خاورو سره ګډول، مړ کول (۲) ځان کړول

بس دغه ډېر ؤ چې ژوندون مې پسې خاورې کړلو

نور په عنقا پسې ځنګل کښې ګرځېدل نۀ غواړم          شمس الزمان شمس

**خاورې کېدل:** اص، مړ کېدل، د خاورو سره خاورې کېدل

**خاورې نۀ در لودل:** اص، خاورې نۀ لرل، هېڅ نۀ لرل، تش لاس او خالي جېب پاتې کېدل،

**خاورې نۀ لرل:** اص، وــــ خاورې نۀ درلودل

**خاورې ورکول:** اص، چاته هېڅ نۀ ورکول، څوك تش پرې تېرول

**خاورې وړل:** اص، (۱) د یو ځاې نه بل ځاې ته خاورې رسول، (۲) هېڅ په لاس نۀ راتلل، بې فائدې وخت تېرول

**ځان خاورې کول:** اص، ځان ډېر زیات ستومانه کول، په څۀ کار کښې ډېر تکلیف او زخمت اوچتول

**د پښو خاورې کښل:** اص، (۱) د پښو د لاندې نه خاوره لرې کول (۲) چا ته نقصان رسول (۳) د چا غیبت کول، په چا پسې پسې شا خبرې کول

**د پښو خاورې کول:** اص، (۱) سپکول، بې عزته کول (۲) چاته زیات نقصان رسول

**د پښو خاورې کېدل:** اص، (۱) بې عزته کېدل، سپکېدل، (۲) زیات نقصان رسېدل (۳) د چا زیاته تابعداري کول، د چا حکم په سر سترګو منل

**د چا په سر خاورې بادول:** اص، (۱) د چا په سر ختې اچول (۲) څوك بې عزته کول

**د خاورو ځخه پورته کول:** اص ، (۱) څوك د زمكې نه اوچتول (۲) چا ته زيات عزت وركول، ترقي زياتول

**د خاورو ځخه ولاړېدل:** اص، (۱) د ځمكې نه اُوچتېدل (۲) عزت موندل

**د خاورو ځخه ولاړېدل او په ايرو كښېناستل:** (۱) د كتمې كار پرېښودل او تاواني كار ته ورلاندې وتل، (۲) د عزت د ځاے نه بې عزتى پلو تلل، بې عزتي خوښول

**د خاورو خاكاه كول:** اص ، چا ته زيات نقصان رسول

**د خاورو سره خاورې كول:** اص ، (۱) په خاورو كښې ګډول (۲) مړ كول،

**د خاورو نه پورته كول:** اص ، د ځمكې نه اُوچتول (۲) عزت او لوئي وركول

**رزق په خاورو لړل كېدل:** اص ، (۱) روزي كښې خاورې ګډېدل، (۲) بدبخته كېدل ، قسمت خرابېدل

**رزق په خاورو ورلړل:** اص ، (۱) د چا روزي په ځمكو كښې لړل (۲) چا ته نقصان رسول (۳) د چا حق وهل

**خاورى:-** (خا+و+ر+ئي) [پ، اس، مؤ] (۱) يو قسم سپين بخنه ځمكه چې ماشومان ئې د تختي سپينولو د پاره پكار وي (۲) پټكړے (۳) د اكوړه خټك په سيمه د يو كلي نوم

**خاورے:-** (خا+و+ري) [اَف: پ(قاموس)، اس مذ ، وا ، ج: خاوري] (۱) ځنګل، درګه، (۲) شينګلي

**خاورې:-** (خا+و+رې)[پ، اس، مُو، ج] (۱) ځمكې، دُوړې (۲) د عاجزۍ نوم، ځيني ځايونو كښې خلق د نوم دوړاندې خاورې ټكے استعمالوي

ټپه: ديدن د سر په بدله دے
چې سر ساتې خاورې به او كړې ديدنونه!

**خاورين:-** (خا+و+ري+ن) [پ، اس ص، مذ ، (مؤ، وا: خاورينه، ج: خاورينې)] خاورين، د خاورو نه جوړ

**خاوند:-** (خا+و+ن+د) [پ، اس، مذ ، وا] خداے پاك، الله تعالي

**خاوند:-** (خا+و+ن+د) [فا ، اس، مذ ، وا ، ج خاوندان، (مؤ، وا: خاونده، ج: خاوندې)] ښځنتن (۱) مالك، بادار ، (۲) مېړۀ

**ــ اخستل:** اص، د ښځې د چا سره وادۀ كول

**ــ بلل:** اص ، (۱) خداے پاك يادول، الله تعالي ته زاري فرياد كول (۲) مالك شمارل (۳) مېړۀ ته غږ كول

**ــ درلودل:** اص، (۱) مېړۀ لرل، (۲) مالك يا آقا لرل

**ــ كول:** اص ، (۱) مېړۀ كول، وادۀ كول (۲) مالك جوړول

**كېدل:** اص، (۱) مېړۀ كېدل، وادۀ كېدل، (۲) مالك كېدل

**بې خاوند كېدل:** اص ، بې خاونده كېدل: اص، (۱) بې مالكه كېدل (۲) كونډېدل

**خاوندتوب:-** (خاوند+تو+ب) [پ، اس، مذ] او خاوندتوب

**خباثت:-** (خ+با+ث+ت) [ع، اس، مذ ، وا ج: خباثتونه] (۱) پليتي، ګندګي، (۲) خبيثتوب، شيطاني، بدنيتي

**خبر:-** (خ+ب+ر) [ع، اس، مذ ، وا ، ج: خبرونه، خبرينه] (۱) اطلاع، پيغام (۲) واقف، اګاه، خبردار (۳) پته (۴) نخښه، نشان (۵) هوش، خود، سود (۲) خبرداري، اوښيارتيا (۷) حال احوال (۸) اعلان

**ــ اوربدل:** اص، (۱) د څۀ واقعې نه معلومېدل، (۲) د چا په حقله څۀ خط خبر راتلل

**ــ اخستل:** اص، (۱) حال احوال معلومول، پته لګول، (۲) سزا وركول، وهل ټكول (۳) ځان معلومول، تپوس كول

محبت بادشاه غلام ، غلام بادشاه كا
خبر واخله له اياز له محموده خوشحال

**ــ ايسارول:** اص، (۱) رارسېدلے خبر نۀ ښكاره كول (۲) په خبر لېږلو كښې ډيل كول

**ــ پټول:** اص، د څۀ خبر حال نه وئيل، خبر نۀ ښكاره كول، د څۀ خبرې متعلق خلق په تيرې كښې ساتل

**ــ ته غوږ نيول:** اص، د څۀ خبر د رارسېدو په انتظار كښې كښېناستل خبر دار رارسېدو ته انتظار كول

**ــ څرګندول:** اص، (۱) د خبرې حال وئيل (۲) پټ راز ښكاره كول،

**ــ خپرول:** اص، خبر نشر كول، خبر په رېډيو يا په ټيليويژن خورول

**ــ خورول:** اص، (۱) خبر مشهورول (۲) بې بنياده خبرې ته هوا وركول

**ــ خورېدل:** اص ، (۱) خبره مشهورېدل (۲) افواه ګډېدل

**ــ راتلل:** اص ، خبر رارسېدل، د څۀ واقعې حال معلومېدل

**ــ رارسېدل:** اص، پيغام رارسېدل، د څۀ واقعې متعلق اطلاع په لاس راتلل

**ــ راوړل:** اص، حال رارسول، د حال معلومول، خبرول

و يعقوب ته دې خبر د يوسف راوړ
نامراد ته هم اغوش كړې له مراده عبدالقادر خان خټك

**ــ رسول:** اص ، اطلاع رسول، پيغام وركول

**ــ ساتل:** اص، د حال احوال نه معلوم ساتل، د چا سره تماس نيولے لرل

**ــ ګرځېدل:** اص ، اطلاع خورېدل، مشهورې كېدل، د مرګ اوازه كېدل

**ــ لېږل:** اص، اطلاع لېږل، پيغام استول

**ــ مشهورول:** اص، (۱) خبر خورول (۲) څۀ خبرې ته باد وركول

**ــ نشر كول:** اص ، و ـــــ خبر خپرول

**ــ وركول:** اص ، (۱) اطلاع وركول، حال وركول، (۲) اخبار يا رسالې ته د څۀ واقعې تفصيل لېږل

**ــ وركېدل:** اص ، (۱) حال معلومېدل، اطلاع وركولے كېدل، (۲) اخبار يا رسالې ته څۀ خبر وركولے كېدل

**ــ وړل:** اص ، حال وړل، پيغام رسول

**خبرتوب:-** (خبر+تو+ب) [پ، اس، مذ] خبرتيا ، خبروالے ، د حال واقفيت، واقفتوب، اطلاع

**خبرتيا:-** (خبر+ت+يا) [پ، اس، مؤ] و ـــــ خبرتوب

**خداے خبر:** اص، خداے پاك ته پته ده، الله پاك پرې خبر دے

وريځې راغونډې شوې چې تندر جوړ كړي
خداے خبر كوم ځاے اشيانې جوړېږي تقويم الحق كاكا خېل

**خبردار:-** (خبر+دا+ر) [فا ، اس ص، مذ ، وا ، مؤ ، وا: خبرداره، ج: خبردارې] (۱) خبر، پوهه، واقف (۲) بېدار، ويښ (۳) د خبردارۍ غږ، پام كوه، په خودشه لكه ,,خبردار چې رپ اونۀ وهې، ،

چې مرغو ته د اسمان ساتي دا كار
دا اوښيار دے د بېدار دے خبردار خوشحال

**خبرداري:-** (خبر+دا+ري) [پ، اس، مؤ] (۱) خبردارۍ، واقفيت، اګاهي، (۲) احتياط ، بېداري

**خبر رسان:-** (خبر+ر+سا+ن) [فا ، اس ص، مذ (مؤ، وا: خبر رسانه، ج: خبر رسانې)] خبر رسوونكے، قاصد، پيغام وړونكے ، مخبر

**خبرغل:-** (خبر+غ+ل) [پ، اس، مذ] چغلخور، چغل مار ، د خبرو غل

**خبرغلا:-** (خبر+غ+لا) [پ، اس، مؤ] چغلخوري، چغل ماري، چغلي

**خبرلوخ:-** (خبر+لو+ت+س) [پ، اس ص، مذ (مؤ، وا ، خبر لوخۀ، ج: خبر لوخې)] (۱) خبر لوخے، خبر رسوونكے (۲) چالاك، ژبه ور، كړتو (۳) ژغبدوُنے، خوږې او پخې خبرې كوونكے

تر سر تر پايه كمے دې نشته
په ښو خبرو څۀ خبر لوخۀ ئې خوشحال

**خبر لوڅ توب**:- (خبر لوڅ+تو+ب)[پ، اِس، مذ] (۱) خبر لوڅ والے، خبر لوڅتیا، خبر لوڅي، د بنو خبرو کولو په چل پوهېدنه (۲) چالاکي

**خبرلوڅتیا**:- (خبرلوڅ+ت+یا)[پ، اِس، مؤ] و_____ خبر لوڅتوب

**خبرلوڅ والے**:- (خبرلوڅ+وا+لے) [پ، اِس مذ] و خبر لوڅ توب

**خبرلوڅي**:- (خبر+لو+ت+سي)[پ، اِس مؤ] و_____ خبر لوڅ توب

**خبر لوڅے**:- (خبر+لو+ت+سے) [پ، اِس ص، مذ، وا، ج: خبر لوڅي] وخبر لوڅ

**خبر مزي**:- (خبر+ م + زي) [اَف: پ (قاموس) اِس، مذ، وا، ج: خبر مزي] د ټیلفون تار

**خبر والے**:- (خبر+وا+ لے)[پ، اِس، مذ] و خبرتوب

**خبرول**:- (خ+ب+ر+و+ل) [پ، مص مت] خبرورکول، اطلاع ورکول، پېغام رسول

**خبرونگ**:- (خ+ب+ر+و+ن+گ) [اَف: پ (قاموس) حمص] و_____خبرونه

**خبرونه**:- (خ+ب+ر+و+نه) [پ، حمص] خبر ورکونه، اطلاع ورکونه، پېغام ور رسونه

**خبروُونکے**:- (خ+ب+ر+وو+ن+کے) [پ، فاع مذ، وا، ج: خبر وُونکي (مؤ: خبر وُونکې)] خبر ورکوونُکے، اطلاع ورکوونُکے، پېغام رسوونُکے

**خبره**:- (خ+ب+ره) [پ، اِس، مؤ، وا، ج: خبرې] (۱) قصه، گفت، البیس (وزیري)، وېنا (۲) واقعه، معامله،

د طالع د خُلې اثر په سامع نۀ شي
که خبرې ئې خوږې لګي تر قنده — علي خان

**ــاسمان ته خېژول**:اِص، (۱) خبره ډېره اوچتول (۲) زیات خرڅ کول (۳) په زوره زوره غږېدل

**ــاخستل**: اِص، (۱) خبره شروع کول، قصه شروع کول (۲) د چا د خولې نه خبره اخستل، د چا په شروع بیان کښې وردانګل

**ــاړول رااړول**:اِص ، (۱) خبره اخوا دیخوا کول، سمه خبره نۀ کول، صفا حال نه وئیل (۲) د څۀ خبرې په حقله زیات سوالونه کول (۳) په کار کښې ډیل کول، خبره ځنډول

**ــاوارول**: اِص، خبره سمول، څۀ فېصله کول

**ــاُوږدول**: اِص، (۱) بغیر د ضرورته څۀ خبره ډېره په تفصیل سره بیانول (۲) څۀ فېصلِه زرنۀ کول، خبرې ته هسې طول ورکول، خبره غنبتل

**ــاُوږدېدل**: اِص، (۱) څۀ خبره بې ضرورته ډېر په تفصیل سره بیانېدل (۲) څۀ فېصلِه زر نۀ کېدل

**ــبادول**: اِص ، (۱) خبره هسې عبث تلل (۲) خبره مشهورېدل

**ــبائیلل**: اِص ، (۱) لرېدل، پرېدل، شکست خوړل (۲) د خبرې سر ته د رسولو جوګه نۀ پاتې کېدل

**ــبدلول**: اِص، خبره ګول کول، خبره په بله اړول، صفا خبره نۀ کول

**ــبدې ته نیول**: اِص ، خامخا ورانې ته ځان جوړول، هېڅ بې هېڅۀ جنګ ته پتون تیپول

**ــبرداشت کول**: اِص ، خبره زغمل، په سخته خبره صبر کول،

**ــبر غدول**:اِص ، تکرار کول، د خبر خواب کول

متل: هر څیز چې برغدشي لنډ شي ، خبره چې برغده شي اوږده شي. هر څیز چې ژووي نو لنډېږي خو خبره چې ژووي نو اوږدېږي.

**ـــبې خونده کول**: اِص ، خبره خرابول ، ورانې او جګړې ته نژدې کېدل

**ـــبې خونده کېدل**: اِص ، (۱) د خبرې مزه نۀ پاتې کېدل، څۀ معامله نقصان ته نژدې کېدل (۲) پرکېدو ته نژدې کېدل

**ـــپاتې کېدل**: اِص ، (۱) د څۀ خبرې یاد پاتې کېدل (۲) څۀ قصه د فېصلې نه پاتې کېدل، د خبرې فېصله نۀ کېدل

**ـــپاکول**: اِص، (۱) خبره سپینول، خبره صفا کول، خبره رښتیاؤ ته رسول (۲) څۀ فېصله کول، خبره رېبول

**ـــپاکېدل**: اِص ، (۱) خبره سپینېدل، خبره صفا کېدل، خبر رښتیاؤ ته رسېدل (۲) د څۀ خبرې فېصله کېدل

**ـــپټول**: اِص، (۱) خبره نۀ ښکاره کول، راز پټ ساتل، د څۀ واقعې په حقله چا ته څۀ نه ښئیل، (۲) په ځان پرده اچول

**ـــپټېدل**: اِص ، (۱) خبره نۀ ښکاره کېدل، خبره په راز کښې پاتې کېدل (۲) په ځان پرده اچولې کېدل

**ـــپه بله اړول**: اِص ، خبره بدلول، خبره ګول کول، صفا خبره نۀ کول

**ـــپه پلو پورې غوټه کول**: اِص ، (۱) خبره زړۀ ته اچول، خبره یاده ساتل (۲) چا ته څۀ خبره وریادول، د څۀ خبرې یاد ګیرنه کول.

**ـــپه خولۀ پورې مړل**: اِص ، (۱) څوک خبرې ته نۀ پرېښول (۲) د خبرې زرجواب ورکول (۳) څوک په څۀ خبره پورې تنګول

**ـــپه خولۀ کښې وچول**: اِص ، څوک بې ځوابه کول

**ـــپه خولۀ کښې وُچېدل**: اِص ، (۱) د څۀ خاص حالاتو په وجه خبره په خولۀ کښې پاتې کېدل (۲) د وېرې له کبله خبره په نیمه کښې پاتې کېدل،

**ـــپه ډاګه کول**:اِص ، صفا خبره کول، حقه وېنا کول، د زړۀ خبره ښکاره کول

**ـــپه زړۀ کښې ساتل**:اِص، (۱) څۀ نۀ وئیل، خبره پټه ساتل (۲) د چا نه د بدل اخستو د پاره د وخت انتظار کول، چا د پاره کینه په زړۀ کښې ساتل

**ـــپه سیند لاهُو کول**: اِص ، د چا خبره په څۀ نۀ ګڼل،د چا خبره په ښۀ شان نۀ اورېدل

**ـــپه شاکول**: اِص ، خبره تنبول، خبره شټ ته کول، خبرې ته ډیل ورکول

**ـــپه شا کېدل**: اِص ، خبره تنبېدل، خبره شټ ته کېدل، خبرې ته ډیل ورکولے کېدل

**ـــپه صلاح کول**: اِص ، په مشوره څۀ کار کول، د صلاح مصلحت نه پس د څۀ خبرې جواب کول، په خبره یو خوله کېدل، په خبره اتفاق راتلل

**ـــپه غوږ تېرول**:اِص ، (۱) د خبرې پروا نۀ کول، خبرې ته پام نۀ کول، څۀ خبرې ته اهمیت نۀ ورکول۔ (۲) چا ته څۀ خبره اَورول

**ـــپه غوږ تېرېدل**: اِص ، څۀ خبره اوترېدل ، د څۀ راز نۀ معلومېدل

**ـــپه غېږ وهل**: اِص ، (۱) خبره بربادول، د خبرې بېخ بنیاد ویستل، خبره تباه کول (۲) جوړه خبره ورانول، کېدونُکې فېصله کښې لته وهل

**ـــپه ګل بدلېدل**:اِص ، خبره په ښۀ شان اورېدلې کېدل، خبرې ته غوږ نیولے کېدل او په هغې عمل کېدل

**ـــپه لاس راتلل**:اِص ، (۱) څۀ خبره اورېدل، څۀ راز معلومېدل، (۲) موقع موندل

**ـــپه نیمه کښې پرېښول**: اِص ، (۱) پوره خبره نۀ بیانول، شروع بیان په مېنځ کښې پرېښول، (۲) څۀ کار سر ته نۀ رسول

**ـــتازه کول**:اِص ، (۱) خبره وریادول (۲) څۀ هېره او زړه جنګ جګړه بیا راتازه کول

**ـــ تالا ترغه کول**: اِص ،

**ـــ تالا کول**: اِص ، خبره بربادول، د خبرې په مېنځ کښې راټوپ کول، د خبرې په خېټه ختل، خبره تا لاترغه کول، په خبره اُور لګول

**ـــ ترخول**: اِص ، سخته خبره کول، په خبرو کښې ګرمېدل، خبره جنګ جګړې ته رسول ،

**ـــ ترخېدل**: اِص ، سخته خبره کېدل ، په خبرو کښې ګرمېدل

**ـــ ترغوږو ور تېرول**: اص ، په چا خبره اَورول، ځوك په خبره پوهول

**ـــ تپل**: اص ، خبره تړل، په چا هېڅ بې هېڅه الزام لګول ، تور پورې كول

**ـــ تړل**: اص ، وـــــــخبره تپل ،

**ـــ تمامول**: اص ، (۱) خبره ختمول (۲) فېصله كول

**ـــ تمامېدل**: اص ، (۱) خبره ختمېدل (۲) فېصله كېدل (۳) مړ كېدل

**ـــ تودول**: اص ، خبره تېزول، څهٔ كار يا معامله را ژوندې كول

**ـــ تودېدل**: اص ، خبره ګرمېدل، جنګ جوړېدل، خبره تېزېدل

**ـــ تيارول**: اص ، څهٔ كار ته تياري كول، څهٔ كار كولو ته نزدې كول، د وادهٔ يا د ابادۍ كولو نېټه مقررول

**ـــ تيارېدل**: اص ، څهٔ كار ته تيارې كېدل ، څهٔ كار كولو ته نزدې كېدل، د وادهٔ يا د ابادۍ كولو نېټه مقررېدل

**ـــ تېزول**: اص ، و خبره تودول

**ـــ تېزېدل**: اص ، و خبره تودېدل

**ـــ ټنګول**: اص ، د خبرې كره كوټه معلومول ، د خبرې رښتيا دروغ معلومول

**ـــ ټوكـل**: اص ، د چـا پـه خبـره اعتـراض كـول، د چـا پـه جـارې بيـان كښـې وردانګل، خبره غلطه شمارل

**ـــ ټيز نول**: اص ، خبره خراپول، خبره ورانول

**ـــ ټينګول**: اص ، خبره پخول، ضد كول، خبرې ته زور وركول

**ـــ جوړول**: اص ، (۱) خبره كولو ته سوچ كول، (۲) فېصله كـول (۳) د ځـان نـه څهٔ خبره په چا پورې تپل

**ـــ جوړې ته بوتلل**: اص ، خبـره جـوړې تـه بـودل، خبـره فېصـلې تـه نـزدې كول، دوه سره روغول

**ـــ جوړې ته بوول**: اص ، و خبره جوړې ته بوتلل

**ـــ جوړېدل**: –اص ، د خبرې پېوند اخستل، فېصله كېدل

**ـــ ځنډول**: –اص ، په خبـره وخت لګـول، خبـره للـول، خبـره زنګـول، فېصـله نـهٔ كول

**ـــ ځنډېدل**: اص ، په خبـره وخت لګېـدل، خبـره للېـدل، خبـره زنګېـدل، فېصـله نـهٔ كېدل

**ـــ څهٔ نه شمېرل**: اص ، خبره څهٔ نهٔ ګڼل، لويه خبره وړه شمارل

**ـــ څهٔ نه ګڼل**: اص ، و خبره څهٔ نه شمېرل

**ـــ ختمول**: اص ، (۱) خبره لنډول، خبره سر ته رَسول، (۲) فېصله كول

**ـــ ختمېدل**: اص ، (۱) خبره سر تـه رسېدل، (۲) څهٔ خبره فېصـله كېـدل، جنـګ جګړه بس كېدل (۳) يارانه دوستانه ختمېدل

**ـــ خراپول**: اص ، خبره بربـادول، خبـره ورانـول، خبـره جنـګ تـه نـزدې كـول، پـه خبره كښې ورانے كول

**ـــ خراپېدل**: اص ، خبـره بربادېـدل، خبـره ورانېـدل، خبـره جنـګ تـه نـزدې كېدل، په خبره كښې ورانے راتلل

**ـــ خرڅول**: اص ، ډېر په زور غږېدل، په خبرو كولو شُومتيا څرګندول

**ـــ خلاصول**: اص ، (۱) خبره تمامول (۲) فېصله كول

**ـــ خورول**: اص ، خبره مشهورول، څهٔ خبرې ته با دوركول

**ـــ خوړل**: اص ، د مطلب خبره نهٔ ښكاره كول، د چا نـه څهٔ خبره پټـه سـاتل، يـو جارې بيان كښې په څهٔ واقعه ټوپ وهل

**ـــ د زغم نه وتل**: اص ، په خبره ډېر زيات غصه كېدل، د سوخت خبره اورېدل

**ـــ ډَپول**: اص ، خبره پټول، په خبره كانړے كېښنول

**ـــ د چا د خولې نه را ايستل**: اص ، (۱) څوك داسې خبرې كولو ته مجبورول كومـه چې هغه په اسانه وئيل نهٔ غواړي (۲) څوك په څهٔ خبره اقبالي كول

**ـــ د چا نه انګېرل**: اص ، په څهٔ خبره د چانه ګيله من كېدل، څوك د څهٔ خبرې يا نقصان ذمه وار ګڼل

**ـــ د خبرې په څېر**: اص ، وزن داره خبره

**ـــ د خر تيز ګڼل**: اص ، خبرې ته هېڅ اهميت نهٔ وركول، خبره په څهٔ كښې نه ګڼل، د چا خبره په غوږ تېرول

**ـــ د خولې نه اخستل**: اص ، د چا پـه خبـره كښـې ورټوپ وهـل، د چا خبـره كـټ كول، په خبره كښې وردانګل

**ـــ د خوند نه وتل**: اص ، خبره خرابېدل، خبره د خونده وتل

**ـــ د خونده وتل**: اص ، و خبره د خوند نه وتل

**ـــ د دامان هوسۍ كېدل**: اص ، خبره بې مطله كېدل، خبره سپكېدل

**ـــ درنوال**: اص ، (۱) خبرې ته اهميت وركول ، (۲) زيات اهتمام او بندوبست كول

**ـــ درنېدل**: –اص (۱) خبـرې تـه اهميـت وركـولې كېـدل، (۲) زيـات اهتمـام او بندوبست كېدل

**ـــ د غږهٔ سر ته خېژول**: اص، (۱)خبره مشـهورول، خبرې تـه بـاد وركـول، (۲) څهٔ خبـره ډېـره ګرانـول، (۲) څهٔ خبـره ډېـره ګرانـول، (۳) پـه اوچـت اواز خبـرې كول

**ـــ دفع كول**: اص ، خبره رپول، په خبره پښـه راكښـل، خبـره برابـرول، څهٔ فېصـله كول

**ـــ خبـره د لاسه وتـل**: اص ، پـه څهٔ خبـره كښـې بـې وسـه كېـدل، د خبـرې موقـع تېرېدل

**ـــ ډُوره كول**: زاص ، خبره شُتول، خبره خراپول، خبره ورانول

**ـــ ډاګـې تـه ويستل**: اص، (۱) خبـره څرګنـدول، خبـره ښـكاره كـول، پټـه خبـره ظاهرول (۲) د چا سره څرګنده دښمني كول (۳) بد نامېدل،

**ـــ ډټۍ كېدل**: اص ، خبره خراپېدل، خبره ورانېدل

**ـــ ډنډوره كـول**: اص ، (۱) خبره مشـهورول، خبـرې تـه بـاد وركـول (۲) پـټ راز څرګندول

**ـــ ډنډوره كېدل**: اص ، خبره مشهورېدل، پټه خبره څرګندېدل

**ـــ ډنګول**: اص ، خبره مشهورول، پروپيګنډه كول

**ـــ رنځول**: اص ، خبره اُوږدول، په هېڅ بې هېڅهٔ خبرې ته طول وركول

**ـــ رېنول**: اص ، و خبره پاكول

**ـــ زړهٔ ته اچول**: اص ، (۱) په خبره ځان پوهه كول، (۲) د چا نـه بـدل اخسـتو د پـاره خبره ياده ساتل (۳) په خبره زړهٔ خوړل

**ـــ زغمل**: اص ، خبره برداشت كول

**ـــ زنګول**: اص ، و خبره ځنډول

**ـــ زنګېدل**: اص ، و خبره ځنډېدل

**ـــ زوتول**: اص ، خبره يادول، خبره په زړهٔ كښې ساتل

**ـــ سپكول**: اص ، (۱) د چا خبرې ته غـوږ نهٔ نيـول، د چا خبـره نهٔ اورېـدل (۲) بـې عزتي كول، د چا سپكاوې كول

**ـــ سپكه ګڼل**: اص ، (۱) خبره بې مطلبه او عبث شمارل (۲) څهٔ كـار د بې عزتۍ سبب ګڼل، څهٔ كار كولو ته نهٔ جوړېدل

**ـــ سپيازول**: اص ، خبـره بـې نتيجـې كـول، خبـره ورانـول، خبـره جـوړې تـه نـهٔ پرېښول

**ـــ سپينول**: اص ، و خبره پاكول

**ـــ سپينېدل**: اص ، و خبره پاكېدل

**ـــ سـر تـه رسـول**: اص ، (۱) خبـره يـوې فيصـلې تـه رسـول، (۲) بـدل اخسـتل (۳) خپله خبره پوره كول

**ـــ سړول**: اص ، روغه جوړه كول، د چا په مېنځ كښې مصالحت كول، جنګ

جګړه ختمول

**ـــ سرېدل**: اص، (۱) روغه جوړه کېدل، د چا په مېنځ کښې جنګ جګړه ختمېدل، (۲) خبره هېرېدل په خبره کښې ډيل راتلل

**ـــ سمول**: اص، خبره جوړول

**ـــ سمېدل**: اص، خبره جوړېدل

**ـــ سورول**: اص، (۱) خبره په ښهٔ شان کول، خبره خوند ته راوستل، خبره کښې خوند پيدا کول (۲) څهٔ کار ته تياري کول

**ـــ سورېدل**: اص، (۱) خبره په ښهٔ شان کېدل، په خبره کښې خوند پيدا کېدل (۲) څهٔ کار ته تياري کېدل

**ـــ سُولول**: اص، خبره ډېره تکرار ول، خبره د خونده ويستل

**ـــ شاربل**: اص، يوه خبره بيا بيا کول

**ـــ شتول**: اص، د خبرې په مېنځ کښې رادنګل او د جاري خبرې رواني ختمول، خبره بې مطلب کول

**ـــ شنل**: اص، خبره صفا کول، د خبرې حقيقت ښکاره ګندول

**ـــ شوئول**: اص، خبره صفا کول، د خبرې حقيقت ښکاره ګندول

**ـــ شوئول**: (سو) اص، وخبره دُوړه کول

**ـــ ښودل**: اص (۱) خبره ښئيل، د څهٔ واقعې حال وئيل، راز ښکاره ګندول (۲) چل ښودل

**ـــ ښئيل**: اص، وخبره ښودل

**ـــ صفا کول**: اص، وخبره پاکول

**ـــ خبره صفا کېدل**: اص، وخبره پاکېدل

**ـــ غښتل**: اص، وخبره أوړدول

**ـــ غوټه کول**: اص، (۱) په صلاح مشوره يا په جرګه مرکه خبره فېصله کول (۲) خبره زړهٔ ته اچول، خبره په ذهن کښې کښېناستل

**ـــ غوځول**: اص، خبره ختمول، فېصله کول، قصه تمامول

**ـــ غوږ ته اچول**: اص، خبره غور سره اورېدل، په خبره ځان پوهه کول، خبره ياده ساتل

**ـــ غوږ ته رسول**: اص، (۱) چا ته خبره رسول، څوک د څهٔ خبرې نه خبرول (۲) جاسوسي کول

**ـــ غوول**: اص، (۱) د خبرې په مېرمن رالګېدل، د خبرې په مېنځ کښې راټوپ وهل، خبره نه اورېدل د خبرې خوند خراپول (۲) خبره ورانول

**ـــ کږول**: اص، خبره بدې ته بوول، سمه خبره نهٔ کول

**ـــ کښې مرچ مساله ګډول**: اص، (۱) په خبره کښې د خوند پيدا کولو د پاره دروغ وئيل (۲) خبره په ښهٔ شان او په خوږو ټکو کښې بيانول

**ـــ کوټې ته خېژول**: اص، خبرې ته باد ورکول، پټه يا د پردې خبره په ډاګه ښکاره ګندول، راز پټ نهٔ ساتل

ټپه: د لېونو سره مې کور دے
د کور خبره مې کوټې ته خېژوينه!

**ـــ کول**: اص، قصه کول، حال وئيل

**ـــ کېدل**: اص، قصه کېدل، حال وئيلے کېدل

**ـــ ګټل**: اص، خبره بريالې کول

**ـــ ګرمول**: اص، شور جوړول، خبره تودول، خبرې ته باد ورکول

**ـــ ګرمېدل**: اص، شور جوړېدل، خبره تودېدل، خبرې ته باد ورکولے کېدل

**ـــ ګنده کول**: اص، خبره خراپول، خبره ورانول

**ـــ ګول کول**: اص، خبره په بله اړول، صفا خبره نه کول، د چا د خبرې ټيک جواب نهٔ ورکول، خبره بدلول، روانه خبره په بل اړخ بوول

**ـــ لاهُو کول**: اص، خبره بربادول، خبره سپکول، خبرې ته غو نهٔ نيول

**ـــ للول**: اص، و خبره ځنګول

**ـــ للېدل**: اص، و خبره ځنګول

**ـــ للېدل** اص، و خبره ځنګېدل

**ـــ لنډول**: اص، خبره ختمول

**ـــ لنډېدل**: اص، خبره ختمېدل

**ـــ لويول**: اص (۱) خبره أوږدول، لنډه خبره نهٔ کول، (۲) زيات انتظام کول، (۳) څهٔ معامله نهٔ فېصله کول، خبره جنګ ته بوتلل

**ـــ لودل**: اص، (۱) خبره أوږدېدل، (۲) زيات انتظام کېدل (۳) څهٔ معامله نهٔ فېصله کېدل، خبره جنګ ته تلل

**ـــ له غوږه ايستل**: اص، خبره هېرول، خبرې ته پام نهٔ کول

**ـــ له غوږه تېرول**: اص، په چا خبره اورول، د چا غوږ ته خبره اچول، څوك په څهٔ خبره خبرول

**ـــ له غوږه تېرېدل**: اص، خبره اورېدل، د خبرې نه خبرېدل

**ـــ ماتول**: اص، بې لوظي کول، قول نهٔ پوره کول

**ـــ ماتېدل**: اص بې لوظي کېدل، قول نهٔ پُوره کېدل

**ـــ معلومول**: اص د خبرې پته کول، په خبره ځان پوهه کول

**ـــ منجول**: اص خبره بيا بيا کول

**ـــ منل**: اص تابعداري کول، د چا په وينا عمل کول

**ـــ ميدان ته کول**: اص خبره په ډاګه کول، خبره ښکاره کول، پټه خبره ښکاره ګندول

**ـــ ميراتول**: اص خبره خراپول، خبره بې خونده کول، د خبرې بيخ بنياد ويستل

**ـــ مېنځ ته اچول**: اص په مجلس کښې څهٔ خبره د بحث د پاره رايادول

**ـــ نورېدل**: اص (۱) د خبرې بل اړخ اخستل (۲) جنګ ته نزدې کېدل

**ـــ وړل**: اص (۱) خبره زغمل (۲) د يو سړي خبره بل ته رسول، شيطاني کول، چُغلي کول (۳) د چا پيغام بل ته رسول

**ـــ وهل**: اص د خبرې په خېته سورېدل، په مېنځ خبره کښې رادانګل، د بل په خولهٔ کښې خبره نيول، د بل خبره نهٔ اورېدل

**ـــ وئيل**: اص (۱) خبره کول، (۲) په خبره کښې راټوپ کول، خبره وهل

**اړتاؤ که خبره**: اص بې تولې خبره، ليون شُوکه خبره بې مقصده خبره

**اړخيزه خبره کول**: اص (۱) صفا خبره نهٔ کول (۲) طرفداري کول، د چا د پاره بې ايماني کول

**بازاري خبرې**: اص فضولې خبرې، سپکې خبرې، بې عزته خبرې، پُوچې خبرې، پربوتې خبرې

**بې بنياده خبرې**: اص بې سرو پښو خبرې، بې حقيقته خبرې

**بې پرتُوګه خبرې**: اص عبث خبرې، بې مطلبه خبرې، پوچې خبرې بې چبوته او بې دليله خبرې

**بې تميزه خبرې**: اص بې حيا خبرې

**بې واکه خبرې**، بې مطلبه خبرې، هغه خبرې چې دليل او مطلب نهٔ لرې

**بې توله خبرې**: اص بې وزنه خبرې، ليون شُوکې خبرې، اړتاو کې خبرې

**بې جوړه خبرې**: اص بې ربطه خبرې، داسې خبرې چې په خپل مېنځ کښې ئې څهٔ سمون يا ترتيب نهٔ وي

**بې چتې خبره کول**: اص اکو بکو وئيل، فضول رغېدل، د وخت او حالاتو مطابق خبرې نهٔ کول، هوائي رغېدل

**بې خرته خبرې**: اص بې چتې خبرې، هغه خبرې چې سر پښې نه لرې

**بې خونده خبرې کول**: اص (۱) بې مزې خبرې کول (۲) د کمزورې خبرې کول (۳) د نهٔ سرېتوب خبرې کول، بې خونده خبرې، بې عزته خبرې، سپکې خبرې، پُوچې خبرې،

**بې سره خبرې**: اص د دروغو خبرې

**بې سُره خبرې**: اص بې مزې خبرې، بې خونده خبرې، بې توله خبرې
**بې فائدې خبرې**: اص عبث خبرې
**بې لارې خبرې**: اص بې رواجه خبرې، غلطې خبرې ، بې اصوله خبرې
**بې نمکه خبرې**: اص بې خونده خبرې، خراپې خبرې، سپورې خبرې
**بې واره خبرې**: اص بې نمبره خبرې، جلتې خبرې، تېرې خبرې
**بې وزنه خبرې**: اص بې مزې خبرې، بې وزنه خبرې، بې اتباره خبرې
**بې وله خبرې**: اص بې دليله خبرې، بې جوړه خبرې، بې سمُونه خبرې
**بې وئې خبره کول**: اص د بې حيائې خبرې کول، سپکې خبرې کول، د اخلاق نه پرېوتې خبرې کول ،بې مطلبه خبرې کول،
**پټې خبرې**: اص د پردې خبرې، دراز خبرې
**پخه خبره**: اص مضبوطه خبره، معتبره خبره، کلکه خبره
**پر خبره سر پوښ ايښول**: اص په خبره کاڼې کېښول، خبره ربول، خبره پټول
**پر پکړې خبره**: اص ختمه خبره، اخرې خبره
**پستې خبرې**: اص (۱) د معشوقې خوږې خبرې ، (۲) نرمې خبرې (۳) د خوشامندې خبرې
**پوچې خبرې**: اص بې واکه خبرې، سپکې خبرې، خوشې خبرې
**په ځان پورې خبرې کول**: اص ځان شرمول، په خپل کور يا عزيزانو پورې سپکې خبرې کول ، په ځان پورې خلق خندول،
**په خبرو اورلګول**: اص د چا په مېنځ کښې شيطانې کول، څوك په جنګ وروستل
**په خبرو اور لګېدل**: اص د چا په مېنځ کښې شيطانې کېدل، د چا په وېنا جنګ جګړه کېدل
**په خبرو کښې خبره راتلل**: اص د يوې خبرې نه بله خبره راوتل، په خبرو خبرو کښې څۀ راز څرګندېدل
**په خبرو کښې خبره کول**: اص د چا د خبرې په مېنځ کښې ورټوپ کول، د خبرې پرخپته ختل
**په خبرو کښې خبره کېدل**: اص د خبرو په مېنځ کښې د چا بل چا وردانګل، د يوې خبرې سره د بلې خبرې تعلق پيدا کېدل
**په خبرو کښې خبره وتل**: اص په مجلس کښې بې اختياره د چا د خولې نه داسې خبره وتل چې هغه ئې کول نۀ غواړي، بې وسه خبره وتل
**په خبرو کښې ګرمېدل**: اص په مجلس مجلس کښې خبرې ترخېدل، په خبرو خبرو کښې جنګ جګړې ته تيارېدل
**په خبرو کښې وردانګل**: اص د چا د خولې نه خبره اخستل، د خبرې په خېټه ختل
**په خبره امنا کول**: اص خبره منل، په خبره دُعا د خېر کول
**په خبره اورلګول**: اص د خبرې بېخ بنياد و يستل، د چا د خبرې په مېنځ کښې راټوپ کول او د هغه د خبرې خوند خراپول
**په خبره اورلګېدل**: اص د چا جارې بيان کټ کېدل، د خبرې خوند خراپېدل
**په خبره بد ګمانه کېدل**: اص په خبره شك من کېدل، شك کول، اتبار ختمېدل
**په خبره بد منل**: اص په خبره غصه کېدل، په خبره خفه کېدل
**په خبره پښنه راکښل**: اص (۱) خبره اړول (۲) خبره پټول، په ځان پرده اچول (۳) د خبرې فېصله کول، خبره ختمول
**په خبره پورې مثال وئيل**: اص د يوې خبرې په لړ کښې بله خبره بيانول، د خبرې نه خبره راويستل، خبرې ته پُشتې ورکول
**په خبره ټوکل**: اص په خبره اعتراض کول
**په خبره ټينګېدل**: اص په خبره مضبوط اُودرېدل، خپله خبره صحيح ګڼل
**په خبره جوړېدل**: اص فېصله کېدل، په څۀ معامله اتفاق راتلل
**په خبره ځان نۀ پوهـ کول**: اص خبرې ته غوږ نۀ کېښول، نصيحت نۀ منل، خبره په غوږ تېرول
**په خبره څنډل**: اص په خبره سپکول، په څۀ خبره چا ته بد رد وئيل، په بد کار پورې څوك سپکول
**په خبره خندل**: اص خبره پورې خندل، د چا بې عزتې کول، د چا خبره سپکول
**په خبره رسول**: اص په خبره پوهـ کول، د اصلې حالاتو نه خبرول، د خبرې د ډډ نه خبرول
**په خبره رسېدل**: اص په خبره پوهـ کېدل، د اصلې حالاتو نه خبرېدل، د خبرې د ډډ نه خبرېدل
**په خبره سپکول**: اص و په خبره څنډل
**په خبره سترګې ايستل**: اص (۱) په خبره ټينګېدل، (۲) چا ته غصه کول
**په خبره سترګې پټول**: اص (۱) په څۀ خبره د ځان پوهولو کوشش نۀ کول (۲) د خبرې د حقيقت نه انکار کول (۳) په غرېدلو سترګو دروغ وئيل
**په خبره سر خُوړول**: اص (۱) په خبره ځان کړول، په خبره د ځان پوهـ کولو کوشش کول (۲) خبره نۀ پرېښول، خبره ډېره اُوږدول
**په خبره سورېدل**: اص په خبره سترګې ويستل، يوه خبره کښې هسې ځان مدعي کول
**په خبره شک من کېدل**: اص په خبره بد ګمانه کېدل
**په خبره صلاح کول**: اص په صلاح مشوره څۀ کار کول
**په خبره صلاح کېدل**: اص (۱) په خبره جوړېدل (۲) مصلحت يو کول
**په خبره کاڼے کېښودل**: اص په خبره ګټه کېښول، خبره پټول، خبره پرده کول، خبره ختمول
**په خبره کښې تېروتل**: اص (۱) په خبره کښې دوکه خوړل، غلطه خبره د خولې نه وتل، په خبره کښې تېر وخت کېدل (۲) د خبرې په دوران کښې څۀ واقعه هېرېدل، تر خبرې تېرېدل
**په خبره کښې تېروخت کېدل**: اص (۱) خبره په مېنځ کښې پرېښول (۲) د چا په خبره کښې هسې ورټوپ وهل (۳) روان کار خراپول
**په خبره کلکېدل**: اص په خبره سختېدل،
**په خبره ګټه کېښول**: اص و ــ په خبره کاڼے کېښودل
**په خبره متيازې نۀ کول**: اص خبرې ته اهميت نۀ ورکول، خبره هېڅ نۀ ګڼل
**په خبره نرمېدل**: اص نصيحت منل، ورې ته تيارېدل
**په خبره يو کېدل**: اص په خبره اتفاق راتلل، په خبره يو خولۀ کېدل
**په خبرو کښې خبره راپيدا کول**: اص (۱) د خبرې نه خبره راويستل، په عين کښې غين راولاړول، زياتې خبرې کول (۲) د کار نۀ کولو د پاره بهانه لټېدل،
**په خبرو کښې خبره راولاړېدل**: اص په خبرو کښې خبره پيدا کېدل
**په خبره کښې رادانګل**: اص په خبره کښې راټوپ کول، د بل خبره ماتول، د بل د خولې نه خبره اختل
**په خبرو کښې ګنده کېدل**: اص په خبرو خبرو کښې جګړې ته جوړېدل
**په خبرو کښې معلومول**: اص په خبرو کښې د چا اندازه لګول، د چا د قابليت اندازه لګول، د چا قابليت ټنګول، يا معلومول
**په خبره يو خولۀ کېدل**: اص خبره په صلاح کول،
**تاؤ جنې خبرې** : اص د غصې خبرې، د قهر او سوخت خبرې
**تر خبرې تېرېدل**: اص و په خبرو کښې تېروتل
**ترخې خبرې کول**: اص وپه خبرو کښې تېروتل
**ترخې خبرې کول**: اص سختې خبرې کول، سپورې خبرې کول، ستغې خبرېکول، د غصې خبرې کول
**تُرشې خبرې**: اص ترسکونې خبرې، د مزې خبرې، خندوُونکې خبرې، تروې خبرې

**تروې خبرې**: اِص وتُرشې خبرې

**تشې خبرې**: اِص خالي خبرې، بې عمله خبرې، هسې دوزې

**تودې خبرې**: اِص گرمې خبرې ، د غصې خبرې

**تیز نه خبره کول**: اِص کمزورې خبره کول، سپکه خبره کول، لاندې خبره کول

**ثوبې خبرې**: اِص (۱) کتبې خبرې، د ثوربېنت خبرې، (۲) د لوئې خبرې

**حقاني خبرې**: اِص کتابي خبرې خدائي حکم، رښتیا خبرې

مـا نـهٔ د ے وئیلـي لـه کتابـه دي ختلـي

غـوږ پـرې باسـي خلقـه دا خبـرې حقـاني دي

**حقه خبره**: اِص رښتیا خبره، پاکه وینا ، سپینه خبره

**خبرې اړول**: اِص اوروني کول، خبرو خبرو کښې پوهـ کو، په مجلس کښې چا ته خپل نیت څرگندول ،

**خبرې په وار کول**: اِص په مجلس کښې په خپل نمبر بغېدل، په خبرو کښې بې صبري نهٔ کول

**خبرې ته پام کول**: اِص خبرې ته توجه ورکول، خبره په ښهٔ شان اورېدل، خبرې ته غوږ نیول

**خبرې ته پام کېدل**: اِص خبرې ته فکر کېدل،

**خبرې ته پرتُوک جوړول**: اِص خبرې ته چل جوړول، څهٔ ورانه خبره په ټکي ټوری یا چل ول سمول

**خبرې ته ټینګېدل**: اِص خبرې ته ځان نیول، خبره زغمل، د څهٔ خبرې ښځې ته تیارېدل

**خبرې تـه غوږ ایښـول**: اِص خبره اورېـدل، په خبره ځان پوهـ کول، خبره منل، خبرې ته غوږ نیول

**خبرې ته غوږ نیول**: اِص وخبرې ته غوږ ایښول،

**خبرې ته وار کول**: اِص خبرې ته موقع لټول، د موقع په انتظار کښېناستل

**خبرې کول**: اِص (۱) د یو بل سره ږغېدل، مجلس کول (۲) صفت بیانول

**خبرې کېدل**: اِص خبرې مشهورېدل، گنگوسې کېدل، بدنامه کېدل

**خبرې وړل**: اِص د چا خبرې سهل، بد رد زغمل، تهمت او تور قبلول

**خوږې خبرې**: اِص مزېدارې خبرې، ښې خبرې، د خوند خبرې

**خوشې خبرې**: اِص و ـــ پُوچې خبرې

**داُوږدې خبره**: اِص د ډېر انتظار خبره، زړ نهٔ کېدونکې خبره،

**داوږدې سینې خبره**: اِص د صبر خبره، د زغم خبره، د ځنډ خبره

**دبدی خبرې**: اِص د دښمنی خبره، دورانی خبره

**دبدی خبره**: اِص د ورانې خبره، د بد خواهی خبره، د شیطانی خبره

**دبې درکی خبره**: اِص د ورکېدو اعلان، د چا د کور نه د ناراضګی یا پاګلتوب په وجه وتل او د هغهٔ په حلقه د رشته دارانو د طرفه په رېډیو د هغه نوم نخښې اعلان کول

**د ټګی برګی خبـرې**: اِص د چالاکی خبرې، د چل ول خبرې ، د دوکې او فریب خبرې

**د تیز پُسکی خبرې**: اِص عبث خبرې، فضولې خبرې، پُوچې خبرې، بې مطلبه خبرې، بې قیمته خبرې

**د ځان نه خبره کول**: اِص د خپله انده څهٔ قصه جوړول،

**د چـا د زړهٔ خبـره کـول**: اِص د چـا د مرضـی خبـره کـول، د بـل د خوشـی او مرضی خبره کول

**د حجرې جماعت خبره**: اِص عامه خبره، څرګنده خبره

**د خبرو نه ویستل**: اِص (۱) زیـات وهـل ډېـول (۲) پـه مجلس کښـې سپکول (۳) ډېرستومانه کول (۴) خفه کول

**د خبرې اړخ لګېدل**: اِص خبره برابرېدل، خبره سمېدل، د خبرې سمون خوړل،

**د خبرې باد اخستل**: اِص خبره مشهورېدل

**د خبرې پر خېټه ختل**: اِص و خبره تالاکول

**د خبرې په سر لم نهٔ پوهېدل**: اِص د خبرې نه ورانه ماشوره جوړېدل، د څهٔ خبره د فېصله کولو په چل نهٔ پوهېدل،

**د خبـرې پـه سـمون پوهېدل**: اِص د خبرې سمون تـه رسـېدل، د خبـرې مطلب تـه رسېدل، په قصه پوهېدل

**د خبرې پیوند اخستل**: اِص د خبرې اړخ لګېدل، خبره برابرېدل ،

**د خبرې تل ته رسېدل**: اِص د خبرې په اصلي مقصد پوهـ کېدل

**د خبرې څټ وهل**: اِص د چا په شروع خبره کښې ورټوپ وهل د خبرې پر خېټه ختل

**د خبرې څخه د وینـو بـوې تلل**: اِص د ورانـي خبرې کـول، د جنګ جګړې خبرې کول،

**د خبرې خوند پر ښنول**: اِص د خبرې خوند پیدا کېدل، خبره خوږلښت ته رسېدل

**د خبرې د مثاله وئیل**: اِص دا د تکیه کلام په ډول وئیلے کېږي لکه

**د خبرې سر کښېښول**: اِص خبره شروع کول، د خبرې بنیاد کېښول،

**د خبـرې سـر معلومـول**: اِص د خبـرې حقیقـت معلومـول، د خبـرې بنیـاد تـه ځـان رسول، د خبرې د جوړې پته لګول

**د خبرې سر لګی نهٔ پېژنـدل**: اِص د خبـرې پـه حقیقـت ځـان نهٔ پوهـ کـول ، د خبـرې حقیقت نهٔ معلومېدل

**د خبرې سمون اخستل**: اِص و د خبرې پیوند اخستل

**د خبرې سمون ته رسېدل**: اِص و د خبرې په سمون پوهېدل

**د خبرې سمون جوړول**: اِص خبره برابرول

**د خبـرې سـمون خـوړل**: اِص د خبـرې سـمې خـوړل، خبـره برابرېـدل، څـهٔ قصـه فېصلې ته نژدې کېدل

**د خبرې سمون نهٔ راتلل**: اِص د خبرې سمې نهٔ خوړل، خبره نهٔ برابرېدل، څهٔ قصه نهٔ فېصله کېدل

**د خبرې سمې خوړل**: اِص و د خبرې سمون خوړل

**د خبرې سمې نهٔ خوړل**: اِص و د خبرې سمون نهٔ راتلل

**د خبرې لګی کړول**: اِص سمه خبره ورانول

**دخبرې مېږمن برابرول**: اِص خبره بربادول

**د لانه خبرې جوړول**: اِص ، هسې فضول ږګېدل، بې مطلبه خبرې کول، پـه خلقـو وچ په موچه تور پورې کول

**د چنې خبره**: اِص د صلاح مشورې خبره، د جرګې خبره

**د حجرې خبرې**: اِص د عام مجلس خبرې، د ډاګې خبرې،

**د خبـرې اړخ معلومـول**: اِص د خبـرې پـه سـمون ځـان پوهـ کـول، د خبـرې رخ معلومول

**د خبرې بوئین لګېدل**: اِص په خبره پوهېدل، خبره رارسېدل

**د خبرې پښې ماتول**: اِص ټیك خبره نهٔ کول، پوره خبره نهٔ کول، ګډه وډه او بې مطلبه خبره کول

**د خبرې ښار کول**: اِص خبره معلومول، د خلقو خبرو ته غوږ ښارنه کول

**د خبرې موندِ معلومول**: اِص د خبرې بېخ معلومول، د خبرې سر معلومول

**د خبرې نه غُل ویستل**: اِص (۱) خبره تکرارول، د خبرې وېخ تـه ځـان رسـول (۲) خبره سخا کول (۳) زیات تحقیق کول

**د خبرې نه گُچ ویستل**: اِص(۱) د خبرې نه کرت ویستل، بـار بـار خبره تکرارول (۲) خبره حقیقت او صفائي ته رسول، د خبرې عرق راویستل،

**د خبرې نه کرت ویستل**: اِص و ـــ د خبرې نه کُچ ویستل

**د خبرې نه قیاس کول**: اِص (۱) د خبرې نه اندازه لګول (۲) د خبرې نه انګېرل

**د خبرې نه مېرمن اخستل**: اِص خبره ډېره منجول ،
**د خبرې وار موندل**: اِص (۱) د خبرې موقعه موندل (۲) بدل اخستل
**د خطر خبره**: اِص د نقصان خبره، د وېرې خبره، د زیان خبره
**د خوند خبرې**: اِص خوږې خبرې، د مزې خبرې
**د خېر خبره**: اِص د فائدې خبره
**د دنیا خبره**: اِص کاروبارې معامله، مادي خبره
**د دین خبره**: اِص د مذهب خبره، روحاني خبره
**د دین دنیا خبره**: اِص د خېر خبره، د مذهب او کاروبار خبره
**د رې خبرې**: اِص د عزت خبرې، د درنښت خبرې
**د زمانو خبره**: اِص ډېره پخوانۍ خبره
**د زور خبرې**: اِص د طاقت خبرې، د قوت خبرې
**د غوږ خبرې**: اِص د پردې خبرې، د راز خبرې
**د فائدې خبرې**: اِص د خېر خبرې
**د قاعدې خبرې**: اِص د رواج خبرې، سمې خبرې، د لارې خبرې، د طریقې خبرې
**د کار خبره**: اِص د مطلب خبره، د غرض خبره،
**د کال خبره**: اِص (۱) د ډېرې مودې خبره (۲) پخوانۍ خبره، زړه خبره
**د کالونو خبره**: اِص ډېره پخوانۍ خبره، د ماضي خبره
**د کمال خبره**: اِص کامله خبره، په تول پوره خبره، د قدر خبره
**د کور خبره**: اِص د خاندان خبره، د دوستۍ خبره، د روغې صلاح خبره، د خپلو تر مېنځ معامله
**د کور خبرې**: اِص د راز خبرې، پټې خبرې
**د ګوټ خبرې**: اِص د کور خبرې، د پردې خبرې، د راز خبرې
**د لارې خبره**: اِص د طریقې خبره، روغه خبره
**د لارې کوڅې خبره**: اِص بې فائدې خبره، د ډاګې خبره، ښکاره خبره، هر چاته معلومه خبره
**د لوئي خبرې**: اِص غورې، اوچتې او د مغرورتیا خبرې
**د مودو خبره**: اِص زړه خبره
**د وېرې خبرې**: اِص د خطرې خبرې، د نقصان خبرې
**رو رو خبرې**: اِص پټې خبرې، د پردې خبرې ، په غوږ کښې خبرې
**زړهٔ چاؤدې خبره**: اِص سترې خبره، د ستومانۍ خبره،
**سپکې خبرې**: اِص د بې عزتۍ خبرې
**سپورې خبرې**: اِص ستغې خبرې، ترخې خبرې، د بې عزتۍ خبرې، فضولې خبرې، بې مطلبه خبرې
**ستغې خبرې**: اِص و سپورې خبرې
**سل خبرې سر ئې یو**: اِص د ډېرو خبرو یو مقصد ، لنډه دا چې
**صحیح خبره**: اِص روغه خبره، د لارې خبره،
**عُل خبرې**: اِص ورانې خبرې، فضول خبرې، عبث خبرې، بې فائدې خبرې ، پوچې خبرې
**غوړې خبرې**: اِص د خوشامندې خبرې
**کږې خبرې**: اِص سختې خبرې، ناسمې خبرې

چې له کږه ئې سم نهٔ وئیل و چاته
اوس کږې خبرې اورې له هــر چا — عبدالقادر خان خټک

**ګل خبرې**: اِص ښې خبرې، روغې خبرې
**ګنده خبرې**: اِص ورانې خبرې ، فضولې خبرې
**لواړې خبرې**: اِص ناغېچه خبرې، ستغې خبرې
**لیون شوکې خبرې**: اِص ګډې وډې خبرې، اوتې بوتې
**مطلبي خبرې**: اِص د کار خبرې، د غرض خبرې

**ناغېچه خبرې**: اِص لواړې خبرې، ستغې خبرې، سپورې خبرې
**نره خبره کول**: اِص زړه وره خبره کول
**ورانې خبرې**: اِص د شیطانۍ خبرې، د شر فساد خبرې
**وړې خبــرې**: اِص (۱) نــازکې خبــرې (۱) خــوږې خبــرې، د معشــوقې د خــولې خوږې خبرې (۲) معمولي خبرې

**خبرې اترې**: - (خ+ب+رې+ا+ت+رې) (پ، کلمه) قصې پیسې، ږغېدل
**ـــ سره کول**: اِص په خپله کښې خبرې کول، مجلس سره کول
**ـــ کول**: اِص قصې پیسې کول، ږغېدل، مجلس کول
**ـــ کېدل**: اِص قصې پیسې کېدل، ږغېدل ، مجلس کېدل
**خبریــال**: - (خ+ب+ر+یـا+ل) [پ، اِس، مـذ ، مـؤ، وا: خبریالـه، ج: خبریــالې] (۱) خبر لوڅ، خبریالے، ژبه ور، د خبرو په چل پوهه (۲) ژغندویه (۳) اَف: اخباري یاد اطلاعاتو غړے یا نمائنده
**خبریالے**: - (خبر+یا+لې) [پ، اِس مذ ، وا : خبریالي، (مؤ: خبریالۍ)] و ـــــ خبریال
**خبریالي**: - (خبر+یا+لي)[پ، اِس، مؤ] خبرلوڅي، ژبه ورتوب
**ـــ کول**: اِص خبرلوڅي کول، ژبه ورتوب کول
**ـــ کېدل**: اِص خبر لوڅي کېدل
**خبرېــدل**: - (خ+ب+رې+د+ل) [پ، مــص] (۱) پتــه لګتــه معلومېــدل، حــال معلومېدل، (۲) پوهېدل
**خبرېدنګ**: - (خ+ب+رې+د+ن+ګ) [اَف: (قاموس) حمص] و خبرېدنه
**خبرېدنه**: - (خ+ب+رې+د+نه) [پ، حمص] (۱) خبرېدهٔ، پته لګته لګېدنه، حال معلومېدنه، خبرېدنګ (۲) پوهېدنه
**خبرېدُونکے**: - (خ+ب+رې+دو+ن+کے) [پ مف، مذ ، وا ، ج: خبرېدُونکي، مؤ: خبرېدونکې] (۱) حال نهٔ معلومېدونکے (۲) پوهېدونکے
**خبرېدهٔ**: - (خ+ب+رې+ده) [پ، حمص] و خبرېدنه
**خبیث**: - (خ+بي+ث) [ع، اِس، مذ ، وا ، ج: خبیثان، (مؤ وا: خبیثـه، ج: خبیثـې] پلیت، نا پاك، شېطان، بد معاش

د مېـــــرې غونـــــدې خوشـــــحاله
الوواتـــــهٔ کانـــــدې خبیـــــث

**خپ**: - (خ+پ) [پ، اِس، مذ ، وا ، ج: خپونه) (۱) خاك، نخښه، داغ (۲) پټ
**ـــ کول**: اِص داغ، نخښه کول
**خپاړې** : - (خ+پا+ړې) [پ (سو)، اِس، مؤ]خپوڅې، خاپوړې
**خپتیان**: - (خ+پ+ت+یا+ن) [پ(ب، خ) اِس، مذ] خفګان، خپګان، ناراضګي
**ـــ پیدا کول**: (ب، خ) اِص دښمني جوړول
**ـــ پیدا کېدل**: (ب، خ) اِص ناراضګي پیدا کېدل، زړهٔ بدېدل
**ـــ کول**: (ب، خ) اِص ناراضه کېدل، غم فکر کول
**خَپ خَپ**: - (خپ، خ+پ) [اَف: پ(قـاموس) اِس، مـذ] (۱) داغ داغ (۲) ورو ورو (۳) پټ په پټه
**ـــ کېدل**: (اَف) اِص داغ داغ کېدل
**ـــ تلل**: اِص ورو ورو تلل، پټ پټ تلل
**ـــ خبرې کول**: (اَف) اِص ورو ورو خبرې کول، پټې پټې خبرې کول
**ـــ کار کول**: (اف) اِص ورو ورو اوپټ په پټه کار کول
**خپــرول**: - (خ+پ+ر+و+ل) [اَف: پ (قــاموس) مــص مــت]خورول، اشــاعت ورکول، نشر کول، (۲) تار په تار کول، تیت کول
**خپرونګ**: - (خ+پ+ر+و+ن+ګ) [اَف: پ(قاموس) حمص] و خپرونه

**خپرونه**:- (خ+پ+ر+و+نه) [اَف: پ(قاموس) حمص] (۱) خپرونګ، خورونه، اشاعت ورکونه، نشر کونه (۲) تار په تار کونه

**خپروُونکے**:- (خ+پ+ر+وو+ن+کے) [اَف: پ (قاموس) فاع، مذ وا، ج: خپروُونکي] (۱) خوروونکے، اشاعت ورکونکے، نشر کوونکے (۲) تار په تار کوونکے

**خپري**:- (خ+پ+ر+ي) [پ، ص، مؤ، ج] پرېشاني، خوري وري، راويري،

په شانه ئي کړي خپري حلقي د زلفو
که زنځير له غاړي وخوت د بنديانو
حميد

**خپرېدل**:- (خ+پ+رې+د+ل) [اَف: پ (قاموس) مص لا] (۱) خورېدل، شائع کېدل، نشر کېدل، (۲) تار په تار کېدل

که سري سوي سري سوي د اسمان لمني سري سوي
موسیٰ پښنه اخله پرېږه چي په زړهٔ مي د مرګي خولي خپري سوي (ولي جان)

**خپرېدنګ**:- (خ+پ+رې+د+ن+ګ) [اَف: پ (قاموس) حمص] و خپرېدنه

**خپرېدنه**:- (خ+پ+رې+د+نه) [اَف: پ (قاموس) حمص] (۱) خپرېدنګ، خپرېدهٔ، خورېدنه، شائع کېدنه، نشر کېدنه (۲) تار په تار کېدنه

**خپرېدُونکے**:- (خ+پ+رې+دو+ن+کے) [اَف: پ (قاموس)، مف، مذ، وا، ج: خپرېدُونکي (مؤ: خپرېدونکي)] (۱) خورېدونکے، شائع کېدُونکے، نشر کېدُونکے، (۲) تار په تار کېدُونکے

**خپرېدهٔ**:- (خ+پ+رې+ده) [اَف: پ (قاموس) حمص] و خپرېدنه

**خپړ**:- (خ+پ+ړ) [پ، اس، مذ، وا، ج: خپړي (مؤ، خپړه، ج: خپړې)] (۱) د بنيادم د لاس پنجه (۲) د پښتو تلې

**خپړې اچول**:- (ب، خ) اص (۱) خپړې لګول، يو بل سره لاس اچول، نښلېدل (۲) د خپل کار په حقله کوشش کول

**خپړې تاوول**: اص (۱) خپړې مروړل، خپړې مړل، ارمان کول، په تېر وخت پسې ژړل، تېر وخت يادول

**خپړې لګول**: اص و خپړې اچول

**خپړې مروړل**: اص و خپړې تاوول

**خپړې مړل**: اص وخپړې تاوول

**خپړ**:- (خ+پ+ړ) [اَف: پ(قاموس)، اس، من] سيلۍ، طوفان، بُوربکۍ، خوېښي، دُوړ دوړکه

**خپړوله**:- (خ+پ+ړ+و+له) [اَف: پ (قاموس) اس مؤ] د چنارو نه، د چنار پانه

**خپړې**:- (خ+پ+ړ+ې) پپ(سو)، اس، مذ] کُوني کبر، کُوني کرپ، سرطان

**خپسر**:- (خ+پ+س+ر) [پ، اس ص، مذ] (۱) د خپل سر مخفف (۲) د خپل سر خاوند، ازاد، د خپلې مرضۍ خاوند، د خپلې خوښې مالک

څو پوره د چا غرض په خپسر نهٔ کړي
ستا به کله شي پوره په بل غرض حميد

**خپسکه**:- (خ+پ+س+که) [پ، اس، مؤ، وا ج: خپسکې] خپسه، خپکه، خپکۍ

**خپسه**:- (خ+پ+سه) [پ، اس، مؤ] و خپسکه

ـــــ **راتلل**: اص (۱) د شپې په خوب کښې ساه بند بدل (۲) ويرې اخستل (۳) پرېشانه کېدل

**خپسې نيول**: اص (۱) ډېر شوق اخستل (۲) په خوب کښې ساه بند بدل

**خپک**:- (خ+پ+ک) [اَف: پ(قاموس) اس مذ، وا، ج: خپک] يو ځناور چې څرمن ئې ډېره قيمتي ده

**خپکه**:- (خ+پ+که) [اَف: پ(قاموس)، اس مؤ] و خپسکه

**خپکۍ**:- (خ+پ+کۍ) [اَف: پ(قاموس)، اس مؤ] و خپسکه

**خپکے**:- (خ+پ+کے) [اَف: پ(قاموس) اس، مذ] (۱) يو قسم ازغے (۲) منافق سړے، درغل دوه ډبيز بنيادم

**خپګان**:- (خ+پ+ګا+ن) [پ، ع: خفقان اس، مذ] خفګان، ناراضګي، خپتيان

ـــــ **راتلل**: اص زړهٔ بداوے کېدل، ناراضګي پيدا کېدل

ـــــ **کول**: اص (۱) ناراضه کېدل (۲) غم فکر کول

ـــــ **کېدل**: اص زړهٔ بداوے کېدل (۲) غم فکر کېدل

**خپل**:- (خ+پ+ل) [پ، اس، مذ، وا، ج: خپلوان (مؤ، وا: خپله، ج: خپلې خپلوانې)] (۱) ځاني، ذاتي (۲) رشته دار

ستا د مخ په بله شمع دلربايه
د پتنګ غوندې پرې سېزم نجيب ځان خپل

تفاوت د خپل پردي وربانددې نشته
که ئې ګورې اورنګزېب بادشاه ګمراه دے خوشحال

ـــــ **اخرت خرابول**: اص خپل ايمان زيانول، دروغ وئيل يا بدکار کول

ـــــ **ايمان زيانول**: اص بې ايماني کول، دوکه کول، دروغ وئيل، په چا بد ګماني کول

ـــــ **بار پر بل اچول**: اص خپل پېټے د بل په اُوږو بارول، خپله ذمه واري په بل چا تپل

ـــــ **بار تر منزله رسول**: اص (۱) خپل بوج اخري ځاے ته رسول (۲) خپل کار سر ته رسول، خپل کار پوره کول (۳) خپلو بچو ته ښهٔ تربيت ورکول

ـــــ **بار درنول**: اص (۱) خپل پېټے درنول (۲) خپل ځان ګنهګارول، خپل اخرت خرابول، د بل چا د پاره خپل ايمان زيانول

ـــــ **بار وړل**: اص خپله ذمه واري په خپلو اوږو اخستل

ـــــ **بخت ژړل**: اص خپل قسمت ژړل خپل تقدير، تندے يا نصيب ژړل، د خپلې کم بختۍ وير کول

ـــــ **پر توګ په ډکي کول**: اص خپل ځان په خپله شرمول، خپل پرتوګ جنډه کول

ـــــ **خپل پر توګ جنډه کول**: اص و خپل پرتوګ په ډکي کول

ـــــ **پر توګ ويستل**: اص ځان شرمول، د خپل ځان او د کور بې عزتي کول، ځان بربنډول

ـــــ **پردي کول**: اص خپل خپلوان خفه کول، د خپلو خپلوانو سره ناراضګي پيدا کول

ـــــ **پردي کېدل**: اص خپل خپلوان خفه کېدل، خپلوانو سره ناراضګي پيدا کېدل

ـــــ **پردي کول**: اص د خپلو خلقو خيال ساتل، خپلولي پالل

ـــــ **پردي نهٔ پيژندل**: اص خپلولي نهٔ پالل، د چا مخ ملاحظه نهٔ کول

ـــــ **تقدير ژړل**: اص وخپل بخت ژړل

ـــــ **تندي ژړل**: اص وخپل بخت ژړل

ـــــ **تور په بل لګول**: اص خپله بد نامه په بل ورتپل

ـــــ **ټټو او د بل اس برابرول**: اص خپل معمولي څيز زيات قيمتي شمارل او د بل قيمتي څيز کم قيمته ګڼل

که څوک تله د انصاف درته په لاس کا
خپل ټټو او د بل اس به برابر کړي رحمٰن بابا

ـــــ **ځان ازمائيل**: اص خپل کوشش کول، خپل وس کول

ـــــ **ځان بربنډول**: اص خپل ځان شرمول، خپله پرده په خپله څرګندول، د کور پټ حال بل چا ته وئيل

**ـــ ځان بر ګڼل**: اص خپل ځان د نورو خلقو نه اوچت حسابول، ځان بریالے شمارل

**ـــ ځان په بل ګالل**: اص د خپلې بې عزتۍ بدل په بل چا اخستل

**ـــ ځان تنګول**: اص (۱) خپل ځان ته تکلیف رسول، په لړ ځاے کښې ځان راغونډول، (۲) زیات خرڅ کول

**ـــ ځان ته اړول**: اص (۱) د بل خبره په ځان پورې تړل (۲) ځان ته ګټه راوړل،

**ـــ ځان ته کتل**: اص (۱) خپل حیثیت او طاقت ته کتل، (۲) خپل فکر کول، خود غرضي کول

**ـــ ځان شرمول**: اص و خپل پرتوګ ویستل

**ـــ ځان ستایل**: اص خپل تعریف په خپله کول

**ـــ ځان لنډ تنګ کول**: اص په خپل خرڅ کښې کمے راوستل، په خپل جېب بوج اچول او د بل مدد کول

**ـــ ځاے کول**: اص (۱) ځان ته ځاے کول

**ـــ خپل**: اص ځان ځاني، بېل بېل، جدا جدا

شیخ دې مونځ روژه کړي زهٔ به ډکې پیالې اخلم
هـــر ســړے پیـــدا دے خپل خپل کار لره کنه خوشحال

**ـــ خپل ګڼل**: اص د خپلو خپلوانو سره مینه کول او د هغوي په کار راتل

**ـــ خپلول**: اص عزیزان راضي کول، د عزیزانو کارونه کول، خپلوي پالل

**ـــ چلېدل**: اص عزیزان راضي کېدل

**ـــ خر تر ختو پورې ایستل**: اص (۱) خپل خر د چیکړو نه ویستل، خپل خر د ختو نه پورې ایستل (۲) خپل غرض تر سره کول، خپل کار پوره کول

**ـــ خوي کول**: اص خپل عادت کول، خپله منل

**ـــ خېر غوښتل**: اص (۱) خپله فائده غوښتل، د ځان خېر غوښتل، خپل سر بچ کول (۲) خود غرضي کول

**ـــ درنول**: اص د خپلو عزت کول

**ـــ رزق په لغته وهل**: اص (۱) خپله کاسه په لغته وهل، خپل رزق په پښه وهل (۲) خپل ځان ته په خپله نقصان رسول

**ـــ سپکول**: اص عزیزان بې عزته کول

**ـــ سر په خپله کلول**: اص نهٔ کېدونکي کار ته لاس اچول

**ـــ سر تـه خېر غوښتل**: اص (۱) ځان ته دُعا کول، د لاتجو ګانجو نه ځان بچ ساتل، خود غرضي کول، (۲) د چا په کار نهٔ راتلل

**ـــ سر شُو کول**: اص (۱)خپل سر زخمي کول، خپل سر ویني کول (۲) خپل پوره پوره کوشش کول، زور لګول، (۳) ناشونکي کار ته لاس اچول

**ـــ سر وینځل**: اص خپله صفائي په خپله پیش کول

**ـــ سمي ته کتل**: اص خپلې اسانۍ ته کتل، خپلې برابرۍ ته کتل

**ـــ ښهٔ وئیل**: اص د ځان تعریف کول

**ـــ غم کول**: اص خپله تابیا کول، خپل بندوبست کول، خپل فکر کول، د خپل حاجت تر سره کولو دپاره څهٔ وسیله لټول

**ـــ فکر کول**: اص و خپل ځان ته کتل

**ـــ کور پوره کول**: اص (۱)خپله فائده لټول، خپل جېب ډکول، (۲) خپلې خرڅ کړې پیسې واپس موندل

**ـــ کور تالا کول**: اص په خپل کور اور پورې کول، خپل کور بربادول

**ـــ کول**: اص خپلول، ځان ته رانژدې کول

په نرمۍ به چا رقیب خپل کړے نهٔ وي
څـــکه بوټے ، د سوغشي زړهٔ ورنیسم علي خان

**ـــ لاس پرې کول**: اص خپل خپلوان له ځانه شوکول یا جدا کول

**ـــ لاس ماتول**: اص ځان مو تازه کول،خپلې متې کمزورې کول

**ـــ مال الوئول**: اص خپله دنیا تا لا کول، خپلې پیسې بې ځایه خرڅ کول

**ـــ مخ په خپله وینځل**: اص ځان ستائل

**ـــ مخ په لارو کول**: اص (۱) خپله حیا راوستل (۲) ځان سپکول

**ـــ مدت په خپله کول**: اص خپل کار کول، په اشر یا بلندره څهٔ کار سر ته رسول

**ـــ مدعیان**: اص وارثان

**ـــ ملا تړ**: اص خپل اولاد، عزیزان

**ـــ نصیب ژړل**: اص و خپل بخت ژړل

**پر خپل سر ډنګول**: اص (۱) بغیر د چا د مشورې او د صلاح نه کار کول، (۲) په یواځې ځان کار کول

**په خپل ډنډ کښې کوږېدل**: اص (۱) په بل چا غرض نهٔ لرل (۲) په کور ځان په څهٔ کښې شمارل

**په خپل سر تېرول**: اص په ځان پېښل، خپله زغمل

**په خپل سر تېرول**: اص په ځان پېښل، خپله زغمل

**په خپل قبر ننوتل**: اص خپله ذمه واري په خپله سر ته رسول، خپل حق ملاوېدل

**په خپل کور اور پورې کول**: اص خپل ځان ته په خپله نقصان رسول

**په خپل ګرېوان کښې کتل**: اص(۱) د خپل عمل په خپله جاج اخستل (۲) د خپلې غلطۍ احساس کول

**په خپلو څهٔ نه وتل**: اص د خپلو خپلوانو څهٔ فکر نهٔ کول، د خپلوانو نه ځان راټولول، په خپلو څهٔ نه بېرزو کېدل

**په خپلو څهٔ نهٔ پېرزو کېدل**: اص و په خپلو څهٔ نهٔ وتل

**په خپلو وتل**: اص د خپلو خپلوانو سره ناسته پاسته پرېښول، او ناراضګي پیدا کېدل، له خپلو وتل،

**په خپله کلکېدل**: اص په خپله خبره ټینګ اودرېدل،

**په خپله کونه چک لګول**: اص خپل ځان او خپل خاندان سپکول، د خپلو عزیزانو بې عزتي کول

**په خپله مېنه کښې اوسېدل**: اص په خپل کور کښې اوسېدل، د چا په کنډر کښې نهٔ اوسېدل، ازاد پاتې کېدل

**خپله ابۍ یادول**: اص ، د تکلیف په وخت کښې خپل زیات خوا خوږي یادول، خپله مور یادول

**خپله برجو او پردې باټ برابرول**: اص خپل خر او د بل آس برابرول

**خپله په کښې کول**: اص (۱) خپله ډنګول، د خپلې مرضۍ کار کول (۲) خپل غرض پوره کول

**خپله پکهٔ لُور د بل تر زوي ښه ګڼل**: اص (۱) خپله سخا لُور د بل د زوي نه په درنه سترګه کتل (۲) خپل ارزان بیعه او بې قیمته څیز د بل چا د قیمتي څیز نه زیات شمارل

**خپله پګړۍ بل ته په سر کول**: اص خپل عزت بل ته حواله کول، بل ته درننښت ورکول

**خپله په کول**: اص په چا خپل کار پوره کول او بیا د بل څهٔ پرواه نهٔ لرل د خپلې مرضۍ کار په چا کول

**خپله تابیا کول**: اص خپل غم کول، خپل بندوبست کول

**خپله ټنګول**: اص خپله غړول، خپله وئیل، د بل نهٔ اورېدل

**خپله چارهٔ په اوبو کښې لیدل**: اص خپل مرګ په سترګو لیدل د خپل انجام پته لګېدل

**خپله حیا ساتل**: اص خپل ځان بچ کول، د بدنامي نه ځان ساتل

که مې ورور که مې عزیز که مې فرزند دے
واړه غـــواړي خپـــلـــه خپـــلــــه مُدعا رحمٰن بابا

**خپله خور لور کرمبزنه ګڼل**: اص (۱) د کور کلي زنانه سپکې ګڼل، خپلې تور

سرې سخا او بې قدره شمارل (۲) د خپل څیز قدر نهٔ کول

**خپله خور لور ګڼل**: اِص خپل حیا شرم لرل

**خپله څونه ورانول**: اِص خپل کور تباه کول، ځان ته په خپله نقصان ورکول

**خپله دنیا تالا کول**: اِص و ـــــ خپل مال الوځول

**خپله ژړا کول**: اِص (۱) خپل غم فکر کول (۲) بل ته فریاد کول

**خپله ږیره ایستل**: اِص (۱) په چا باندې لوے غم راتلل، (۲) ځان بې عزته کول

**خپله ږیره په لاس کښې ورکول**: اِص چا ته خپل اختیار ورکول

**خپله ږیره کلول**: اِص ځان په خپله بې عزته کول

**خپله سترې وئیل**: اِص خپل غم، خپل تکلیفونه بیانول، خپله ژړا کول

**خپله طبع کول**: اِص په خپله مرضۍ کار کول

**خپله غاړه نیول**: اِص ځان ګنهګارول، دروغ وئیل

**خپله غرول**: اِص و ـــــ خپله ټنګول

**خپله کاسه په لغته وهل**: اِص و ـــــ خپل رزق په لغته وهل

**خپله لار نیول**: اِص خپل کار کول د چا په کار کښې کار نهٔ لرل، خپله مخه کول خپله لاسه په ځان کول: اِص

**خپل ځان ته په خپله نقصان رسول**: ، په څهٔ خبره کښې ځان په خپله ګېرول

**خپله لمن بچ کول**: اِص ځان د ګناه نه ساتل

**خپله لمن په سر اړول**: اِص خپل ځان په خپله شرمول، ځان په کست شرمول خپل راز په خپله څرګندول

**خپله مخه کول**: اِص و ـــــ خپله لار نیول

**خپله نیول**: اِص خپل ضد کول، د بل نهٔ اورېدل

**خپله وینه**: اِص خپلې متې، خپل خاندان، خپل خپلوان، د وینې عزیزان

**خپلې پښې په تبر وهل**: اِص (۱) د عزیزانو او خپلوانو سره دښمني کول (۲) په خپله بې عزتي اوسپکوالي خوشحالېدل، ځان ته په خپله نقصان ورکول

**خپلې پښې په تېشه وهل**: اِص خپلې پلې وهل، خپل ځان ته په خپله نقصان رسول، خپل خپلوان د ځان نه جدا کول

**خپلې پلې وهل**: اِص و ـــــ خپلې پښې په تبشه وهل

**خپلې سترګې ټیټول**: اِص خپل ځان بې عزته کول

**خپلې توکلې لاړې بیرته اخستل**: اِص (۱) خپل تو کاني را اوچتول (۲) د چا سره د کړې نېکۍ بدل غوښتل، چاته نیکي وریادول (۳) ناشونے کار کول، په شوي کار پسې لاس مښل،

**خپلې متې**: اِص خپل ملاټر، خپل عزیزان

**خپلې وینې څټل**: اِص د خپلو بدو عملونو سزا موندل

**د خپل سورې بخه بېرېدل**: اِص بې زړه کېدل، د ځانه ډرېدل یا یرېدل

**د خپله ځانه وئیل**: اِص څهٔ خبره د ځانه جوړول، دروغ وئیل، قیاس کول

**د خپله څخه نهٔ رغېدل**: اِص د عزیزانو رشته دارانو سره تعلق نهٔ پرېکېدل

**د خپله لاسه بېرېدل**: اِص (۱) د خپله ځانه ترسېدل، ویرېدل (۲) د خپل قهر غصې د انجام نه ډار پیدا کېدل

**د خپله لاسه رسول**: اِص د خپل عمل نتیجه موندل

**خپل اړي**: - (خپل+ا+ړي) [پ، اِس ص، مذ] په خپلو پښو ولاړ په ځان پوره، په کور پوره،

**خپل اړي**: - (خپل+ا+ړي)[پ، اِس، مؤ]په خپلو پښو اُودرېدل

**خپل چارُوکي**: - (خپل+چا+رو+کي)[اَف: پ(قاموس) اِس ص، مذ، وا، ج: خپل چارُوکي (مؤ: خپل چارُوکې)] (۱) خود کار (۲) خود غرض

**خپل چاري**: - (خپل+چا+ري) [اَف: پ(قاموس) اِس، مؤ] خود غرضي

**ـــ کول**: اِص، خود غرضي کول

**خپل چاري**: - (خپل+چا+ري) [اَف: اِپ(قاموس) اِس ص، مذ وا، ج: خپل چاري (مؤ: خپل چارې)] غرضي، خود غرضه

**خپل خوښي**: - (خپل+خ+و+ښي یا خې)[پ، اِس ص، (۱) د خپلې خوښې مالك (۲) خود پسند

**خپل سرتوب**: - (خپل+س+ر+تو+ب) [پ، اِس، مذ] خپل سرتیا، خپل سروالے، خپل سري، خپل مخي

**ـــ کول**: اِص خپل مخي کول، خپل سري کول

**خپل سرتیا**: - (خپل+س+ر+ت+یا) [پ، اِس، مؤ] و خپل سرتوب

**خپل سروالې**: - (خپل+س+ر+وا+لې) [پ، اِس، مؤ] و خپل سرتوب

**خپل سرے**: - (خپل+س+رے) [پ، اِس ص، مذ، وا، ج: خپل سري(مؤ: خپل سرې)] خود مختاره، د خپلې مرضۍ خاوند، خود سر، خپل سریز

**خپل سري**: - (خپل+س+ري) [پ، اِس، مؤ] و خپل سرتوب

**خپل سریز**: اِص (مؤ، وا: خپل سریزه: ج: خپل سریزې) و خپل سرې

**خپل مخے**: - (خپل+م+خے)[پ، اِس ص، مذ، وا، ج: خپل مخي (مؤ: خپل مخې)]خپل مخیځ، په خپل فکر تلُونکے، خپله مخه کوونکے د خپلې مرضۍ خاوند، خپل سریز

**خپل مخي**: - (خپل+م+خي) [پ، اِس، مؤ]په خپل فکر تلنه، خپله مخه کونه، خپله مرضي کونه

**ـــ کول**: اِص خپله مخه کول، په خپله مرضي تلل

**خپل مخیځ**: - (خپل+م+خي+د+ز) [پ، اِس ص مذ]و خپل مخے

**خپل منمي**: - (خپل+م+ن+مي) [اَف: پ(قاموس) اِس مؤ] لوئي، غرور، کبر

**خپلواك**: - (خپل+وا+ك)[پ، اِس، مذ (مؤ، وا خپلواکه، ج: خپلواکې)]خود مختار، د خپل اختیار خاوند، ازاد

**خپلواکتوب**: - (خپل+وا+ك+تو+ب) [پ، اِس، مذ] خپلواکتیا، خپلواکوالے، خپلواکي، خود مختاري، ازادي

**خپلواکتیا**: - (خپل+وا+ك+ت+یا)[پ، اِس، مؤ] و خپلواکتوب

**خپلواکوالے**: - (خپل+وا+ك+وا+لي) [پ، اِس، مذ]و ـــــ خپلواکتوب

**خپلواکے**: - (خپل+وا+کے) [پ، اِس ص، مذ، وا، ج: خپلواکي، (مؤ: خپلواکې)] خود مختاره، ازاد

**خپلواکي**: - (خپل+وا+کي) [پ، اِس، مؤ] و خپلواکتوب

**خپلتوب**: - (خپل+تو+ب) [پ، اِس، مذ]خپلوي، خپلولي، خپلتیا، خپلوالے

**خپلتیا**: - (خپل+ت+یا) [پ، اِس، مؤ]و خپلتوب

**خپلوالے**: - (خپلو+وا+لے)[پ، اِس، مذ]و خپلتوب

**خپلوان**: - (خپل+وا+ن)[پ، اِس، مذ، ج، (مؤ، ج: خپلوانې)]خپل، رشته داران، خوښان، عزیزان

**خپل پردي**: - (خپل+پ+ر+دي)[پ، ص]رشته دار او غېر، لرې نژدې

خپل پـــــــردي ته ځاے د طمع پاتې نهٔ شهٔ
خداے دې نهٔ کا څوك په خپل چارې درماند — عبدالقادر خان خټك

**خپلول**: - (خ+پ+ل+و+ل) [پ، مص مت] (۱) خپل کول، دوست جوړول (۲) ځان ته کول، ملکیت حاصلول (۳) د بل نقل کول

**خپلولي**: - (خپل+و+لي) [پ، اِس، مؤ]خپلوالے، خپلوي، رشته

**ـــ کول**: اِص رشته کول، خپلوي کول، عزیزولي کول

**ـــ کېدل**: اِص رشته کېدل، خپلوي کېدل، عزیزولي کېدل

**خپلونګ**: - (خ+پ+ل+و+نه)[پ، حمص] (۱) خپلونګ، دوست کونه، ځان ته

نژدې کونه(۲) ملکيت حاصلونه (۳) د چا نقل کونه

**خپلوُونکے**:- (خ+پ+ل+وو+ن+کے)[پ، فـاع، مـذ، وا، ج: خپلـووُنکي (مـؤ: خپلـووُنکې)](۱) دوست کـوونُکے، ځـان تـه نـژدې کـوونُکے (۲) ملکيـت حاصلوونُکے (۳) د چا نقل کوونُکے

**خپلـوي**:- (خ+پ+ل+وي) [پ، اِس، مؤ] خپلـولي، دوسـتي، عزيزولـي، رشـته داري،

نۀ حيا شته نۀ وفا شته نۀ خپلوي شته

خـلق واړه پــــه معنٰی لــکه مرتد شۀ خوشحال

**ـــ پالل**: خپلـوي سـاتل، خپلـوي لـرل، د عزيزولـي، ذمـه واري پـوره کـول، د خپلوانو سره مينه لرل

**ـــ ساتل**: اِص و خپلوي پالل

**ـــ لرل**: اِص و خپلوي پالل

**ـــ کول**: اِص رشته کول، عزيز ولي کول، خپلولي کول

**ـــ کېدل**: اِص رشته کېدل، دوستي کېدل، عزيزولي کېدل، خپلولي کېدل

**خپلوے**:- (خ+پ+ل+وے) [اَف: پ(قاموس) اِس، مذ] د پېچش مـرض، پـه رمـو کنبناستل

**خپله خوښه**:- (خ+پ+له+خ+و+ښه يا خه)[پ، مؤ]خپله مرضي، خپله طبع

**ـــ خپلېدل**:- (خ+پ+لې+د+ل) [پ، مـص لا](۱) ملگـرے کېـدل(۲) پـه ملکيـت کنبې راتلل

پردې زامن اوپردئ لونه خپلېدلے نۀ شي

دا خود غرضه زمانه څوک بدلولے نۀ شي شمس

**خپلېدنګ**:- (خ+پ+ې+دَ+ن+گ) [اَف: پ (قاموس)، حمص] و خپلېدنه

**خپلېدنـه**:- (خ+پ+ې+د+نـه) [پ، حمـص](۱) خپلېـدنګ، خپلېـدۀ، ملگـرې کېدنه (۲) رشته يا دوستي کېدنه (۳) په ملکيت کنبې راتلنه

**خپلېدُونکے**:- (خ+پ+ې+دو+ن+کے)[پ، مف، مـذ، وا، ج: خپلېـدوُنکي، (مـؤ خپلېـدوُنکې)](۱) ملگـرے کېـدوُنکے(۲) رشـته کنبـې راتلُـونکے، عزيزولي کېدوُنکے(۳) په ملکيت کنبې راتلوُنکے

**خپلېدۀ**:- (خ+پ+م)[اَف: پ(قاموس) اِس مذ] پـه مزکـه راکنبـلے شـوے، ترپښـو لاندې خچـني کړے شـوے، رسـوېلے شـوے، چکختـاړ شـوے، سـوريلے شـوے

**کول**: (اَف) اص، پـه مزکـه راکنبـل، ترپښـو لانـدې چخنـي کـول، رسـوېيل، چختاړول، سوريل

**کېدل**: اص، پـه مزکـه راکنبـلې کېـدل، ترپښـو لانـدې چخنـي کېـدل، رسـوېيلې کېدل، چختاړېدل، سوريل کېدل

**خپنځ**:- (خ+پ+ن+دز) [اَف: پ(قاموس) اص مـذ(مؤ، وا: خپځـه، ج: خپنځـې)] اوار کړے، اوار شوے، رسوېلے، خچني کړے

**ـــ کول**:(اَف) اص اوارول، په مزکه برابرول

**ـــ کېدل**:(اَف) اِص اوارېدل، په مزکه برابرېدل

**خپنځتوب**:- (خپنځ+تو+ب) [اَف: پ(قاموس) اِس، مـذ] خپنځتيـا، خپنځـوالے، دمزکې سره اوراتيا، چخني توب

**خپنځتيا**:- (خپنځ+ت+يا) [اَف: پ(قاموس) اِس، مذ] و خپنځتوب

**خپنځل**:- (خ+پ+ن+د+ز+ل)[اَف: پ(قاموس) مص مت] د مزکې سره اَوارول، رَسويل، تر پښو لاندې چخني کول

**خپنځلے**:- (خ+پ+ن+د+ز+لے) [اَف: پ(قاموس) مف، مـذ، وا، ج: خپنځلـي، (مؤ: خپنځلې)] د مزکې سره اوار کړے، رَسويلے، چخني کړے

**خپنځينه**:- (خ+پ+ن+د+ز+نه) [اَف: پ(قاموس) حمص] د مزکې سره اَوارونه، رسوينه، چخني کونه

**خپنځوالے**:-(خ+پ+ن+دز+وا+لے) [اَف: پ(قاموس)، اِس، مذ] و خپنځتوب

**خپنځوُنکے**:- (خ+پ+ن+د+ز+و+ن+کے) [اَف: [پ (قـاموس)، اِس فـاع، مـذ، وا، ج: خپنځـونکي (مـؤ: خپنځـوُنکې)] د مزکـې سـره اَواروونکـے، رسويونکے، چخني کوونکے

**خپنځېـدل**:- (خ+پ+ن+د+زې+د+نـه) [اَف: پ (قـاموس)، حمص]خپنځېـده، رسوينه، د مزکې سره اَوربدنه، چخني کېدنه

**خپنځېدُونکے**:- (خ+پ+ن+د+زې+دو+ن+کے) [اَف: پ(قاموس)، مـف، رِذ، وا، ج: خپنځېـدُونکي (مـؤ: خپنځېـدونکې)]د مزکـې سـره اوارېـدونکے، رسويُونکے، چخني کېدُونکے

**خپنځېدۀ**:- (خ+پ+ن+د+زې+ده) [اَف: پ (قاموس)، حمص] و-خپنځېدنه

**خپند**:- (خ+پ++ن+د) [اَف: پ(قاموس)، اِس، مذ، وا، ج: خپندُونه) (۱) دوړې يا مالوچو ډنډت شوې گنجي، پاغونده (۲) پـه مزکـه اوار شوې، پـه لتـو چت پت کړے شوے، رَسويلے شوے، چخني کړے شوے

**ـــ کول**:(اَف) اص(۱) د ډنډت شوې وړې يا مالوچو گنجي جوړول، پاغونده جوړول (۲) په مزکه اَوارول، په لتو چت پت کول، رسويل، چخني کول

**ـــ کېدل**:(اَف) اص(۱) د ډنډت شـوې وړې يـا مـالوچو گنجـي جوړېـدل، پاغونـده جوړېـدل (۲) پـه مزکـه اوارېـدل، پـه لتـو چـت پـت کېـدل، رسوېلے کېدل، چخني کېدل

**خپندل**:- (خ+پ+ن+د+ل) [اَف: پ (قاموس) مص مت] وړې په لښته اشنل

**خپنـدلے**:- (خ+پ+ن+دَ+لے)[اَف: (قـاموس) مـف مـذ وا ج: خپندونکي]پـه مزکـه اوار کړے، د مزکې سره سم کړے (۲) وړې په لښته اشنلې

**خپندنـه**:- (خ+پ+ن+د+نّـه ) (اَف:پ (قـاموس) حمـص )(۱)پـه مزکـه اَوارونـه، د مزکې سره سمونه (۲) وړې په لښته اشنل

**خپندوُنکے**:- (خ+پ+ن+دُو+ن+کے ) (اَ:پ (قاموس) اِس فاع مز وا ج: خچندونکي (مؤ: خچندونکې)(۱) په مزکه اَواروونکے، د مزکې سره سمووُنکے (۲) وړئ په لښته اشنونکے

**خپنـدول**:- (خ+پ+ن+د+و+ل) (اَف:پ (قـاموس) مـص مـت )(۱) پـه مزکـه اوارول (۲) سخت وهل، رسويل (۳) پُنبه يا وړې ډنډت کول

**خپندونګ**: -(خ+پ+ن+د+وَ+ن+گ )(اَف:پ (قاموس) حمص )و ـــ خچندونه

**خپندونـه**: -(خ+پ+ن+د+و+نـه ) (اَف: پ (قـاموس) حمـص )(۱)خچنـدونګ، پـه مزکه اَوارونه (۲) سخت وهنه، رَسوينه (۳)پنبه يا وړې ډنډت کونه

**خپنـــدووُنکے**: - (خ+پ+ن+د+وو+ن+کـے ) (اَف:پ (قـاموس) فـاع مــذ وا ج: خچنـدوکې (مـؤ: خچنـدوُونکې )(۱)پـه مزکـه اوارووُنکـې (۲)سـخت وهونکي رسويُونکي (۳)پنبه يا وړې ډنډت کووُنکے

**خپندېـــدل**: - (خ+پ+ن+دې+د+ل) (اَف:پ (قـاموس) مــص لا )(۱)پــه مزکــه اوراېدل(۲)سخت وهلې کيدل، رسويلې کېدل (۳) پنبه يـا وړې ډنډت کېدل

**خپندېـــــدنګ**: - (خ+پ+ن+دې+دَ+ن+گ ) (اَف:پ (قــــاموس) حمــــص )و خچندېدنه

**خپندېدنـه**: - (خ+پ+ن+دې+د+نـه ) (اَف:پ (قـاموس) حمـص )(۱)خچندېـدنګ، خپندېدۀ پـه مزکـه اَوارېدنـه (۲) سخت وهلې کېدنـه رسويلې کېدنـه(۳) پُنبه يا وړې ډنډت کېدنه

**خپنديـــدُونکے**: - (خ++ن+دې+دُو+ن+کـے ) (اَف:پ (قـاموس) مــف مــذ و ج: خچند ېدوُنکې (مـؤ: خچند ېدُونکې )(۱)پـه مزکـه اوارېـدونکے (۲)سخت

وهلې کېدونکے (۳)پنبه یا وریږ ډنډت کېدُنکے

**خپېړ غوبړے**:- (خ+پ+ن+ړ+غ+وَ+ڑې یا گے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ وا ج: خپېڼغوړې)د غوړ پڅکې

**خپو**: – (خ+پُو) (اَف:پ (قاموس) اس مذ)خپه

**خَپ وچُوپ**:- (خ+پ+و+چُو+پ) (اَف:پ (قاموس) ص)په خاموشۍ، ورو شان، په غلا، غلې غلې

**ـــ کول**: (اَف) ص(۱)پټول (۲) خاموش کول، غلې کول

**ـــ کېدل**: (اَف) اص(۱)پټېدل (۲) خاموش کېدل، غلې کېدل

**ـــ ورتلل**: (اَف) اصپه غلا ورتلل، پټ پټ ورتلل غلې غلې ورتلل

**ـــ وړل**: (اَف) اص په غلا وړل په خاموشۍ وړل، پټ پټ وړل غلې غلې وړل

**خپور**:- (خ+پو+ر) (اَف:پ (قاموس) ص مذ وا ج: چنارۀ (مؤ وا: خپره ج: خپرې) (۱)شائع، نشر، چاپ

**خپور توب**:- (خپور+تو+ب) (اَف:پ (قاموس) اس مذ)خپورتیا، خپور والے، ویرالے، گډ وډتوب

**خپورتیا**:-(خپور+ت+یا) (اَف:پ (قاموس) اس مو) و- خپورتوب

**خپوروالے**:-(خپور+وا+لے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) و- خپورتوب

**خپورول**: (خ+پو+ر+و+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت) و- خپرول

**خپورونه**:-(خ+پو+ر+و+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) -وخپرونه

**خپوروُنکے**:-(خ+پـو+ر+وُو+ن+کې) (اَف:پ (قـاموس) اس فـاع مـذ وا ج: خپرووُنکې (مؤ: خپرووُنکې) و- خپرووُنکے

**خپورېدل**:- (خ+پو+رې+د+ل) (اَف: پ (قاموس) مص لا) و- خپرېدل

**خپورېدنه**:- (خ+پو+رې+د+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) و- خپرېدنه

**خپورېـدُونکے**:- (خ+پـو+رې+دُو+کې) (اَف:پ (قـاموس) مـف مـذ وج: خپورېدوُنکې (مؤ خپورېدوُنکې) و- خپرېدُونکې

**خپورېدۀ**:- (خ+پو+رې+ده) (اَف:پ (قاموس) حمص) - وخپورېدنه

**خَپ وړل**:- (خَ+پ+و+ړ+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت) په غلا وړل، پټ وړل، غلے وړل

**خپُوسه**:- (ډ+پُو+سه) (اَف:پ (قاموس) ص) ځورب او چټک

**خپُوسي**:- (خ+پو+سي) (پ خ اس مذ وا: خپوسے) پوره سې نرې نرې خسنې

**خَپ وهل**:- (خَ+پ+و++ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت)(۱)په غـلا وړل، غلې وړل (۲) څۀ کار په پټه کول

**خپه**:- (خ+پهَ) (پ اس مؤ وا ج: خپې) پښه

**ـــ مړه کېدل**: اص پښه مړه کېدل، پښۀ اُودۀ کېدل، پښه کورندې نیول

**خپه**:- (خ+پَه) (اَف:پ (قاموس) اس ج) د مـالوچو پـه شـان یـوه مـاده چې اور زر اخلې دا د ځینې ونو د پوسکتې او د وښو نه جوړلولے شي

**خپه**:- (خ+پَه) (پ ص) (۱)خفه، ناراض (۲)چې په مرۍ زور ورکړے شوے وي

**ـــ کول**: اص(۱)خفه کول ناراض کول(۲)په مرۍ زور کول

**ـــ کېدل**: اص خفه کېدل، ناراض کېدل(۲)په مرۍ زور ورکولے کېدل

**خپه بند**:- (خ+پهَ+بَ+ن+د) (اَف:پ (قـاموس) اس مـذ وا ج: خپـه بندوُنـه) د ښـځو یو پلن کالے چې غمې په کښې لګېدلې وي

**خپه خُوپیا**:- (خ+په+خُو+پ+یا ) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ)چپه چُوپیا، خاموشي

**خپې**:- (خ+پېَ) (اَف:پ (قاموس) اص مو)د وریو نه جوړه شوې رسۍ یا پړے

**خپـے**:- (خَ+پے) (اَف:پ (قاموس) ص مـذ (مـؤ: خپـې)داغـدار، چې نخښـې وربانذې جوړې وي

**خت**:- (خ+ت) (پ اس مذ وا ج: ختُونه)

پې دې کم اختر پرې وکړو لوئ به هم کړے
چې خیرن درڅخه نـــۀ شي دا یوکت دے خوشحال

**ـــ وړل**:اص د چا په کور کښې د نوې پېدا شوي ماشوم د پاره قمیص وړل

**ختا**:- (خ+تا) (اس معرفه) خطا، ختن، د یو ملک نُوم

پـــه ختاختن د مښکو قـدر نشته
نۀ په هند کښې څۀ قیمت لري شکر (خوشحال)

**ختا**:- (خ+تا) (اَف:پ (قاموس) ع: خطا اس مؤ)

(۱)غلطي (۲) غلط (۳)د نخښې نه بې ځایه (۴)بې لارې

**ـــ کول**:اص(۱)غلطي کول (۲) غلطېدل(۳)گذار پـه نخښـه نۀ لګېدل (٤) بې لارې کېدل، دوکه کېدل

**ختـا ایسـتل**:- (ختـا+اِي+س+ت+ل) (اَف:پ (قـاموس) مـص مـت) دوکـه کـول، غلطول، غُلول

**ختـا ایسـتلے**:- (ختـا +اِي+س+تَ+لـې) (اَف:پ (قـاموس) مـف مـذ وا ج: ختـا ایستلي (مؤ: ختا ایستلي) دوکه کړے، غلط کړے، غلونے

**ختـا ایسـتنگ**:- (ختـا +اِي+س+تَ+ن+گ) (اَف:پ (قـاموس) حمـص) و- ختـا ایستنه

**ختا ایسـتنه**:- (ختـا+ اي+س+ت+نه) (اَف:پ (قـاموس) حمص) ختـا ایسـتنگ، دوکه کونه، غلطونه، غُلونه

**ختا ایستونکے**:- (ختـا+اي+س+تُو+ن+کې) (اَف:پ (قـاموس) فـاع مذ وا ج: ختـا ایسـتُونکي (مـؤ: ختـا ایسـتُونکي)دوکـه کُـونکے، غلطـووُنکے، غلووُنکے

**ختا پسکے**:- (ختـا+پس+کې) (اَف:پ (قـاموس) اس مـذ) یـو قسـم د بېـډیو یـا د ششپـتو لوبه

**ختا وتل**:-(ختا +و+ت+ل) (اَف:پ (قاموس) مص لا) دوکه کېدل، دوکه خوړل، غلېدل

**ختا وتلے**:- (ختا +و+ت+لے) (اَف:پ (قاموس) مف مذ وا ج: ختـا وتلې (مؤ ختـا وتلې) دوکه شوے، دوکه خوړلے غُلېدلے

**ختا وتنگ**:- (ختا و+تَ+ن+گ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و ختاوتنه

**ختا وتنه**:- (ختا +و+ت+نه) (اَف: (قاموس) حمص) ختـا وتنگ، دوکه کېدنه، دوکه خړنه، غُلېدنه

**ختا وتُونکے**:- (ختا+وَ+تُو+ن+کې) (اَف:پ (قاوموس) مف مذ وا ج: ختـاوتونکې (مؤ: کتاوتُونکي) دوکه خوړونکے، دوکه کېدُونکے، غلېدُونکے

**ختائي**: (خ+تا+ئيَ) (اَف:پ (قاموس) ع اخطائي اس مؤ) غلطي، سهو

**ـــ کول**:اص غلطي کول

**ـــ مښتل**: (اَف) اص په غلطۍ یا بې ارادې نشانه ویشتل، ختائي ویشتل

**ـــ ویشتل**: -اص - و ختائي مښتل

**ختـرز**:- (خ+تَ+ر+ز) (اَف:پ (قـاموس) اس مـذ) یـو قسـم وابنـۀ چې سـور گُـل نیسي

**خترړے**:- (خ+ت+ر+ڑې+یا گے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ وا ج: خترزي) یو قسم خړنګے مرغۍ چې په سپرلي کښې په غرونو کښې لیدلے شي او ډېره خوش اوازه وي

**ختکـه**:- (خ+تَ+کـه) (اَف:پ (قـاموس) اس مـؤ وا ج: ختکـي) هغـه لـرگے چې کرښې پرې راکښلے شي، پیمانه

**ختل**:- (خ+ت+ل) (پ مص مت) (۱)ورختل،

کــه زۀ نۀ وي عشق به تاله رابلل څوک
په پالنگ به دے دا هسې درختل څوک (خوشحال)

(۲) ترقي کول (۳) د مېخ هېر کېدل (٤) نرخ گرانېدل (٥) د جوړې بې ځایـه کېدل (٦) راټوکېدل (٧) نمر ښکاره کېدل

نمر خېژي خوشحال چې خروس د سحر بانگ لي
شرط د پټ نیا زدے چې برخواست دے زه او تۀ

(۸)لیکلے کېدل (۹) حمله کول

**پرختل**:-اص(۱)پرسوربدل (۲)ونې ته پاس ختل (۳) جنسي کار ورسره کول(۴)په چا پهٔ لتو ختل، بنهٔ وهل او پستول(۵)حمله پرې کول

**په سرختل**:-اص سرکش کېدل، خود سره کېدل

**ختلے**:- (خ+تَ+لے) (پ مف مذ وا ج: ختلي مؤ: ختلې)(۱)پورته شوے (۲) په ترقي شوے (۳) مېخ بهر ته راوتلې (۴)نرخ گران شوے (۵) جوړ بې ځایه شوے (٦)نمر رابنکاره شوے (۷)راټوکېدلے (۸) حمله کړے

**ختم**:- (خَ+ت+م) (پ اس مذ وا ج: ختمونه) (۱)تمام، سرته رسېدلے (۲) د قرآن شریف د ختمېدلو رسم

**ـــ کول**:-اص(۱)پوره کول، سرته رسول، ختمول (۲)د قرآن شریف ختم کول (۳)مړ کول، بېخ بنیاد ویستل

**ـــ کېدل**:-اص(۱)پوره کېدل، سرته رسېدل (۲)د قرآن شریف د ختم دستوره کېدل(۳)مړ کول، بېخ بنیاد ویستلې کېدل

**ختمول**:- (خَ+ت+مَ+و+ل) (پ مص مت)(۱)ختم کول، پوره کول، سرته رسول (۲)مړ کول، بېخ بنیاد ویستل

**ختمونه**:(خَ+ت+م+و+نه) (پ حمص)(۱)ختم کونه، پُوره کونه، سرته رسونه(۲)مړ کونه، بېخ بنیاد ویستنه

**ختموُونکے**:- (خَ+ت+مَ+دُو+ن+کے) (پ فاع مذ وا ج: ختموونکي (مؤ: ختموونکې)(ختم کوُونکے، پوره کوُونکے، سرته رسوُونکے)(۲)مړ کوُونکے، بېخ بنیاد ویستُونکے

**ختمه**:- (خَ+ت+مَه) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) د مړینې مړې چې په اوومه یا په څلوېښتمه ورځ د مړي په کور کښې ک خېرات په ډول ورکولے شي، اُوومه، څلوېښتے

**ختمې**:- (خَ+ت+مي) (پ ع: حتمي اس مؤ) خاتمه، انجام، بالکل اخري

**ختمېدل**:- (خَ+ت+مي+د+ل) (پ مص لا)(۱)پوره کېدل، سرته رسېدل، ختم کېدل (۲)مړ کېدل بېخ بنیاد ویستلے کېدل

**ختمېدنه**:- (خَ+ت+مي+د+نه) (پ حمص)(۱)پوره کېدنه، سرته رسېدنه، ختم کېدنه ، ختمېدهٔ(۲)مړ کېدنه، بېخ بنیاد ویستلے کېدنه

**ختمېدُونکے**:- (خَ+ت+مي+دپو+ن+کې) (پ مف مذ وا ج: ختمېدُونکي (مؤ: کتمېدُونکې)(۱)پوره کېدُونکے، سرته رسېدُونکے، ختم کېدُونکے(۲)مړ کېدُونکے، بېخ بنیاد ویستلې کېدُونکے

**ختمېدهٔ**:- (خَ+ت+مي+ده) (پ حمص)و ختمېدنه

**خُتن**:- (خُ+تَ+ن) (اس معرفه) د تاتار ملک

د ختن ترکې دې زر راځي سلام له
نن د تخت لائقه ترکه باگرامي ده (علي خان)

**ختنگ**:- (خ+ت+نه) (اَف:پ (قاموس حمص)و ختنه

**ختنگ**:-(خَ+تَ+ن+گ) (پ (مو) اس مز وا ج: ختنگان)کنده، ډوغل، غار

**ختنه**:- (خ+ت+نه) (پ حمص)(۱)ختنگ، پورته تلنه(۲)ترقي کونه (۳) د مېخ بهر کېدنه(۴)نرخ گرانېدنه (۵)د جوړ بې ځایه کېدنه(٦)راټوکېدنه (۷) نمر رابنکاره کیدنه(۸)حمله کونه

دا د زړهٔ بنار مې ستا دے چې په سترگو
بانـــدې هر کله ختنه کــوې بنـهٔ (خوشحال)

**ختوبرېتے**:- (خ+تُو+ب+رې+تے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ)هغه ځوان چې ایله ئې شونډه شنهٔ شوې وي

**ختورے**:- (خ+تُو+رے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ وا ج: ختُوري)شفتالو، شلتالو

**ختورے**:(خ+تو+رے) (اَف:پ (قاموس) مذ وا ج: ختوري) یو غرئیز ازغن بُوټے

**ختول**:- خ+ت+و+ل) (پ (گن) مص مت) تیخورول، تخنول

**ختولے**:- (خ+ت+وَ+لے) (پ (گن) مف مذ وا ج: ختولي (مؤختولې) تیخرولے، تخنولے

**ختونه**:- (خ+ت+و+نه) (پ (گن) حمص) تیخورنه، تخنونه

**ختُونکے**:- (خ+تُو+ن+کے) (پ فاع مذ وا ج: کتونکي (مو: ختُونکې) (۱)پورته کېدوُنکے (۲)ترقي کووُنکے(۳)مېخ بهرکېدوُنکے (۴) نرخ گرانېدوُنکے (۵)جوړ بې ځایه کېدوُنکے (٦)راټوکېدوُنکے(۷) نمر رابنکاره کېدُونکے

**ختوُونکے**:- (خ+ت+وَو+ن+کے) (پ (گن) فاع مذ وا ج: (ختووُنکي (مؤ: ختووُنکي) تیخوروُونکے، تیخونوُنکے

**خته**:- (خ+ته) (پ اس مؤ وا ج: ختې)لته، کپړا، جامه

بــربنډ کښېنه ختې ورکړه
هېڅ اسراف درڅخه نشته (سکندر خان ختک)

**ختې ایستل**:- اص شرمول، بې عزته کول، سپکول، د چا څهٔ عیب ډنډوره کول، بامې ایستل

**ختی**:- (خ+تئ) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ)شمیز، قمیص د لاندې د اغوستلو ورکوټے قمیص شان

**ختے**:- (خ+تے) (پ ص مذ وا ج: ختې) ختلے، پورته شوے

**ختے**:- (خَ+تَے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ)گوډ، لَلُون

**ختي**:- (خَ+تي) (اَف:پ (قاموس) اس ج)د ناوې د وادهٔ جوړه

**ختېدل**:- (خ+تې+د+ل) (پ (گن) مص لا)تیخورېدل، تخنېدل

**ختېدنه**(خ+تې+د+نه) (پ (گن) حمص) تیخورېدنه

**ختېدُونکے**:- (خ+تې+دُو+ن+کے) (پ (گن) مف مذ وا ج: ختېدُونکي (مؤ: ختېدُونکې)تیخورېدُونکے، تخنېدُونکے

**ختېدهٔ**:- (خ+تې+ده) (پ (گن) حمص)و ختېدنه

**خټ**:- (خ+ټ) (پ اس مذ)(۱)د خاورو کمر، چم

چې ئې غم د خاورو خټ که خپل یار ترنه مخ پټ که
بل څـــوک عــلي خـان گـوري سر تـا قدم لـه نازه

(۲)د څهٔ نرم څیز د وېخ خیرے(۲)د ونې مُونډ (۳) د تورې وریځې گټ (۴)خاکې بند ، د خاورو ځلے

چې د زړهٔ هغه به وووینې خوشحال
خو یوه قطره که تبر شے تر دا خټ

**خټبه**:- (خَ+ټ+بَه) (پ اس ص مذ)گلکار ، د خټو کار کووُنکے، خټگر، ختمار

**خټبېدل**:- (ډَ+ټ+بې+ل) (اَف:پ (قاموس) اس مذ (مؤ وا: خټبېله ج: خټبېلي)په وېخ کښې ناست خیرے

**خټپي**:- (خ+ټ+پئ) (پ (سو) اس مؤ)د سپلې خټکے، یا ټپوُسے، د سپلمې چړک

**خټک**:-(خَ+ټ+ک) (پ اس مذ وا ج: خټکان، خټک (مؤ وا: خټکه ج: خټکې) د پښتنو یوه قبیله

د افغان پـــه ننگ مې اوُتـــړله توره
ننگیالے د زمانې خوشحال خټک یم

**خټک**:- (خَ+ټ+َک )اف:پ (قاموس) اس مذ )(۱) د تور گونگټ یو قسم (۲) خرک، هغه ورکوټې ډکے چې د لینډې د دوؤ ژبو تر مینځهٔ د کاسې سره څوړند وي

**خُټکنې**:- (خُ+ټ+کَ+ن+ړې) (پ (سو) اس مؤ)د ورو ماشومانو پخلے کول

**پخول**:- (سو) اصد وړو ماشومانو پخلے کول

**پخول**:- (خَ+ټ+کي) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ)(۱)سپلمې، یو قسم بوټے چې پاڼې ئې پلنې وي او پې په کښې وي (۲)لُومکه

**ختکے** :- (خ+ټ+کے) (اَف:پ (قاموس) مذ وا ج: ختکي) (۱)د خاورو وړوکے خټ، چم (۲)د بنيادم کالبوت

**ختکے** :- (خ+ټ+کے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: ختکي)د ټاټيو مونډه چې پټي کښې د فصل ربيلو نه پس پاتې وي

**ختکے** :- (خ+ټ+کے) (پ اِس مذ وا ج: ختکي)

ختکے لــه ختکي نه رنګ اَخلي

عالمان شېخان ئې لادي ناپکار (خوشحال)

**د ختکي نه رنګ اخلي**:- مح:په يو مجلس کښې د ناستې پاستې اثر کېږي

**ختکي والا**:(خ+ټ+کي+وا+لا) (پ اِس ص مذ )خربوزې خرخوونکے

**ختکـر** :(خَ+ټ+ګَ+ر) (پ اِس ص مـذ وا ج: ختګـر (مـؤ وا: ختګـره ج: ختګرې) -و ختيه

**ختماله**:- (خ+ټ+ما+لَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ وا ج: ختمالي) ختموښے، ګرماله، ګرماله

**ختمختول**:(خَ+ټ+م+خ+تو+ل) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ )ګډ وډ، خراب

**ـــ کول**: – (اَف) اِص ګډ وډ کول، خرابول

**ـــ کېدل**: – (اَف) اِص ګډ وډ کېدل، خرابېدل

**ختموښې**:- (خَ+ټ+مو+ښې+يا خې) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: ختموښې) و ـــــ ختماله

**ختمېل**:- (خَ+ټ+مې+ل) اَف:پ (قاموس) اِس مذ )انجام، خاتمه، اخر

**ختُو**:- (خَ+ټُو) (اَف: پ (قاموس) اِس مذ )يو بوټے چې د جوارو په فصل کښې راټوکېږي

**ختويے** :-(خ+تو+يے) (پ اِس ص مذ) خړې اوبۀ، خړويے

هغه بحر څۀ په بحر حساب نۀ دے

چې اوبۀ ئې ګل الـوده وي ختويے (رحمن بابا)

**ختُورکے**:- (خ+ټُو+ر+کے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: ختُورکي )يو مشهور بوټے چې په شګو کښې راټوکېږي

**ختوسکے**:- (خَ+تُو+سـکے) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ وا ج: ختوسـکي) ختسکے، خرک

**ختـول**:- (خ+ټ+و+ل) (اَف:پ (قـاموس) مـص مـت) اُوبـۀ خـړول، اوبـو کښـې خاورې ګډول

**ختُول**:- (خ+ټُو+ل) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) د دوؤ، ورونيوګډه مزکه، ناوېشلې مزکه چې ورونړه ئې فصل په ګډه سره اخلي او بيا ئې تقسيموي

**ختـول**:- (خ+تو+ل) (اَف:پ (قاموس) اِس مـذ )(۱)د اوبـو رتـل ختـه، غـاټيول (۲) کوټه کالے، ختټؤل (۳)غاټول، يو قسم ګل

چــې ګلونــه د بهار واړه تمام شي

د زړه سُود شېدا بلبله په ختول کا (خوشحال)

**ختوله**:- (خَ+تو+لَه) (پ (ظفر) ص مؤ )خړې اوبۀ،خاورينې اُوبۀ

**ـــــ کول**:- (ظفر) اِص اوبۀ خړول

**ـــــ کېدل**:- (ظفر) اِص اوبۀ خړېدل

**ختوبله**:- (خَ+ټ+وې+له) (اَف:پ (قاموس) ص ختمبله

**خته**:- (خَ+ته) (پ اِس مؤ وا ج: ختې) (۱)خاوره

ختې د عـــاشــق چې لاخښـلے مــلائـکو

غم ئې لکه بُوس هسې وړګډ کړ په خمير کښې (علي خان)

(۲)چيکړ (۳)ټينګ (٤)نسل، قام، سرشت(۵)خوي (٦)خفه دلګير

**ـ جوړؤل**:-اِص چيکړ کول خته خوشتول

**ـ خوشتول**:- اِص خته لمده ول، چيکړ جوړول

**ـ کول**: -اِص (۱)خاوره يو ځاے کول (۲)چيکړ کول (۳)ضائع کول(٤)خفه کول

**ـــ کېدل**: -اِص (۱)خاورې يو ځاے کېدل (۲)چيکړ کېدل (۳) ضائع کېدل (٤)خفه کېدل

**ـ لمده ول**: -اِص و - خته خوشتول

**ـ ورکول**:اِص (۱)د ختې لبو ورکول(۲)په بوټانو يا څپلو خته مرل

**پخه خته**: -اِص بنۀ صحت، هغه څوک چې د ډېر عمر سره هم زوړ نۀ ښکاري

**پـه خته اورلګول**: -اِص د خپـل غـرض د پـاره نۀ کېـدونکي کـار تـه لاس اچـول، ناجائز کار کول لکه: غرضي په خته اور لګوي

**په خته تلل**: -اِص دوکه کېدل، تېرخوړل

**په خته کښې اخښل**: -اِص (۱)په خته کښې ګډ وډ کول(۲)پـه خوي کښـې وراچول پـه ضمير کښې اچول، عادت کېدل

**په خته کښې بوختېدل**: -اِص (۱)په خته کښې ننبتل، په خته کښـې ښـخېدل (۲)پـه مصيبت کښې ګېرېدل

**په خته کښې ښسوئېدل**: -اِص (۱)پـه ختـه کښـې راپرېوتـل(۲)دوکـه کيـدل، تيندک خوړل

**په خته کښې ننبتل**: -اِص و په خته کښې بوختېدل

**د دېوال خته په دېوال لګېدل**: –مخ: يو څيز په مناسب ځاے ګلېدل

**ختې اچول**: -اِص (۱)خاوره جمع کول (۲)څوک بد نامول

**ختې په خولۀ کول**: -اِص (۱)ختې خپلې ته اچول(۲)مړ کول

**ختې په خولۀ کېدل**:اِص مړ کېدل، توروخاورو ته تلل

**ختې تپل**: -اِص (۱)لمده خاوره د ګرمالې نه اول په ديوال ويشتل(۲)د کـار نۀ ځـان خلاصول(۳)سُورے يا سوړه په ختو بندول

**ختې ټوپکې کول**: -اِص(۱)د ختو ډېرکې جوړول(۲)بې فائدې او عبث کار کول

**ختې جوړول**: -اِص يو ځاے چيکړ کول، ځاے خراپول

**ختې خټل**: -اِص(۱)د ماشوم ختې خوړل(۲)د عاجزۍ له کبله خوراک نۀ موندل

**ختې دُوړول**: -اِص په څۀ څيز لړه لړه خاوره اچول

**ختې دُوړېدل**: -اِص د کچه چت نه لړ لړ ګرد راپرېوتل

**ختې راوړل**: -اِص (۱)خاوره راچلول(۲)په پېزار پورې ګند راوړل(۳)څۀ په لاس نۀ راتلل

**ختې کول**: -اِص(۱)ابادي کول(۲)لبو يا لپائي کول

**کونـدرېبل**:- (ب،خ، اِص (۱)ختـې کنسـتل(۲)پـه ختـو کرښـې راکښـل(۳)د شرمندګۍ په وخت کښې په مزکه کښې ګوتې وهل

**ختې لوټې کول**: -اِص(۱)ابادي کول، د ختو لوټو کار کول(۲)خواري مزدوري کول

**ختې ورکول**:اِص هېڅ نۀ ورکول،څوک تش پرې ايستل

**خر په خته کښې ننبتل**: -اِص چاته موتازېدل، چا ته حاجت پېدا کېدل

**د دېوال خته په دېوال لګي**: –مخ:د عزيزانو فائده عزيزانو تـه رسي، د رشته دار نفع او نقصان د رشته دار وي

**طبيعت خته کېدل**: -اِص ناراضه کېدل، خفه کېدل دلګېرېدل، طبيعت درنېدل

**ختۍ**:- (خَ+ټ+ۍ) (پ (و) اِس مؤ )وړه ماشومه چې بنۀ صحت ئې وي

**ختيے**:- (خ+ تيے) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ وا ج: ختيي) د خټ اسم تصغير، ورکوټے خټ

**خُتيے**:- (خُ+تيے) (پ (افر) اِس مذ ) ورکوټې ماشوم تـه د مينې لـه کبله وئيلے شي لکه "خُتيې لړې اوبۀ راوړه"

**ختې کول**:- (خَ+تې+ک+و+ل) (پ مص مت) چيړ جوړول، ګاره تيارول

**ختې کېدل**:- (خَ+تې+کې+د+ل) (پ مص لا) چيکړ جوړېدل، ګاره تيارېدل

**خټېل**:- (خ+ټې+ل) (اَف:پ (قاموس) اِص مذ) خټېل، خړوبے، هغه خاوره چې اوبۀ په کښې زياتې وي

**خج**:- (خَ+ج) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خجُونه) (۱)څگ (۲) د ژبې په لهجه کښې په ټکي زور

**ـــــ کول**:- (اَف) اِص (۱)څگ کول (۲) د ژبې په لهجه کښې په ټکي کښې په يو خاص ځاے زور کول، په پښتو ژبه کښې خج همېشه د ټکي په اخري اواز کولے شي

**خجالت**:- (خَ+جا+ت) (ع اِس مذ) شرمندګي، شرم، حيا، خجلت، کچه والے، خـجـالت ئې د قامت کړه سروه شنډه
په بربښنا ئې د خپل غابښ اوبۀ ژاله که (علي خان)

**خجل**:- (خَ+جَ+ل) (ع اِس مذ) نادم، شرمنده، کچه
ستا له غمه چې ډېر ډېر همېشه ژاړم
دواړو سترګو مې خجلَ نـربـدا کړه (خوشحال)

**خجلت**:- (خَ+ج+ل+ت) (پ تر ع: خجالت اِس مذ) شرمندګي
له خجلت بوي د ګلو
ځينې پاځي په شتاب (حميد)

**خجلول**:- (خَ+ج+ل+و+ل) (پ مص مت) شرمنده کول، شرمول، جچه کول
په جمال غره که ډېروبله ټول شي
ستا جمال خجلوي جمال د واړو (خوشحال)

**خجلونه**:- (خَ+ج+ل+و+نه) (پ حمص) شرمنده کونه، شرمونه، کچه کونه

**خجلووُنکے**:- (خَ+ج+ل+وُو+ن کے) (پ فاع مذ وا ج: خجلووُنکي (مؤ: خجلوونکې) شرمنده کوونکے، شرموونکے، کچه کوونکے

**خجلېدل**:- (خَ+جَ+لې+د+ل) (پ مص لا) شرمنده کېدل، شرمېدل، کچه کېدل

**خجلېدنـه**:- (خَ+جَ+لې+د+نـه) (پ حمص) شرمنده کېدنـه، شرمېدنه، خجلېدۀ، کچه کېدنه

**خجلېدوُنکے**:- (خَ+جَ+لې+دُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خجلېدوُنکي (مؤ: خجلېدونکې) شرمنده کېدوُنکے، شرمېدوُنکے، کچه کېدوُنکے

**خجلېدۀ**:- (خَ+جَ+لې+ده) (پ حمص) و خجلېدنه

**خجوُره**:- (خَ+جُو+رَه) (پ اِس مؤ وا ج: خجوُرې) کجوره، خُرما، خجيره

**خجوُنکے**:- (خَ+جُو+ن+کے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خجونکي (مؤ: خجُونکې) (۱)مست، چست، (۲) لوبغاړے

**خجه**:- (خَ+جَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) نامرد، يرندوکے، ډارن

**خجۍ**:- (خ+جۍ) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) غرئيزه ګاځره

**خجۍ**:- (خَ+ج+جۍ) (پ (ګن) اِس مؤ) د کجورې ونه

**خجي**:- (خ+جي) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) مستي، شوخي

**ـــ کول**:-(اَف) اِص مستي کول، شوخي کول

**خجيره**:- (خَ+جي +رَه) (پ (ب،خ) اِس مؤ وا ج: خجيرې) و-خجوره

**خځوکے**:- (خَ+د+زُو+کے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) بکسکے، ډېر کم څيز، خڅپوکے، خځوزے

**خځه**:- (خ+د+زه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ وا ج: خځې) بُوساړه چې لبـو کړې شوې وي

**خچ**:- (خَ+چ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)بد سلوکي، بد اخلاقي، بد خوي (۲)نقصان خلل (۳) شک

**ـــ اچول**:- (اَف) اِص (۱)خنډ اچول، رکاوټ پيدا کول (۲)شک پيدا کول

**ـــ پاتې کېدل**:-اِص شک پاتې کېدل، لږ څۀ کمے پاتې کيدل

**ـــ کول**:- (اَف) اِص بد خوي کول، بد اخلاقي کول

**خچپچ**:- (خ+چ+پَ+چ) (پ ص مذ) خچنې خچنې، مات ګډ، بېکاره، ټوټې وټې

**خچپچتوب**:-(خچپچ+تو+ب) (پ اِس مذ) خچپچتيا، خچپچوالے، مات ګډوالے

**خچپچتيا**:(خچپچ+ت+يا) (پ اِس مذ) و خچپتوب

**خچپچوالے**:(خچپچ+وا+لے) (پ اِس مذ) و خچپچتوب

**خچپچـول**:(خ+چ+پَ+چ+و+ل) (پ مـص مـت) مـات ګـډ اچـول، چخنې جچخنې کول

**خچپچونه**:-(خَ+چ+پَ+و+نه) (پ حمص) مات ګډاچونه، چخنې چخنې کونه

**خچپچوُونکے**:(خَ+چ+پَ+وُو+ن+کے) (پ فـاع مـذ وا ج: خچپچـوُونکي (مـؤ: خچپچوونکې) مات ګډ اچوونکے، چخنې چخنې کووُنکے

**خچپېدل**:(خَ+چ+پَ+چې+د+ل) (پ مص لا) ټوټې ټوټې کېدل، خچنې خچنې کېدل

**خچپېدنـه**:(خَ+چ+پَ+چې+د+نَـه) (پ حمص) مـات ګـډ کېدنـه، ټـوټې ټـوټې کېدنه، چخنې چخنې کېدنه

**خچپچېدنوُنکے**:(خَ+چ+پَ+چې+دُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خچپچېدُونکي (مؤ: خچپچېدوُنکې) مات ګډ کېدوُنکے، ټوټې ټوټې کيدوُنکے، چخنې چخنې کېدوُنکے

**خچتڼا**:- (خَ+چ+ت+ن+ړا) (اَف:پ (قاموس) ص) خچونيا، د ژاولې يا ژوغلې د ويلې کېدلو حالت

**خچخچـو نے**:- (خَ+چ+خ+چُـو+ نے) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ) خربـازې، سـر کونډې، بوډا غانې

**خچخل**:- (خ+چ+خَ+ل) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خچخلُونه) د چرګې پخه کړې اګۍ چې لاندې پاس ماته وي

**خچر**:- (خَ+چَ+ر) (پ اِس مذ) (۱)کچر، خچره، کچره (۲)دوغله، نيم ګډر(۳)بې خويه، وران کارے

**خچره**:- (خ+چَ+ره) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) د مال په بدل کښې مال ورکونه، د مال ادلُون بدلون

**خچره کول**:(اَف) اِص د مال په بدل کښې مال ورکول، د مال ادلون بدلون کول

**خچره**:- (خَ+چ+رَه) (پ اِس مؤ) پاتې شوے بېکاره مال

**خچره**:- (خَ+چ+رَه) (پ اِس مؤ) کچهر

**خچره**:- (خَ+چ+ره) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) د سترګو چخې

**خچکه**:- (خ+چَ+که) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـؤ) (۱)نرۍ لښـتـه چې ماشومان د غنډارو لوبه پرې کوي (۲)د سارندې ليندۍ (۳)هغه ګولۍ چې په نخښـه ټيک وُنۀ لګي

**خچل**:- (خ+چ+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت) ټېله ورکول، دېکه کول

**خچلے**:- (خَ+چَ+لے) (اَف:پ (قـاموس) مف مذ وا ج: خچلي (مـؤ: خچلې)ټېله کړے شوے،دېکه شوے

**خچمچ**:- (خ+چ+م+چ) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ (مـؤ: خچمچـه) (۱)خـس خاشاک، ګډ وډ، بېکاره څيزونه(۲)تپل مخې سرے، هغه څوک چې مخ ئې ننکو وهلے وي، چې مک ئې ټکي ټکي وي

**خچن**:- (خ+چ+ن) (پ ص مذ (مؤ وا :خچنه ج: خچني) خيرن، ګنده، سخا، ناولے

**خچورے**:- (خ+چُو+رے) (اَف:پ (قـاموس) اِس مذ وا ج: خچوُري) خځوزے، د ډوډۍ بکسکے

**خچوُکے**:- (خ+چُو+کے) (پ اِس مذ وا ج: خچُوکي)د غوښې ټوټه

**ځان سُور خچو کے کول**: -اص(۱)ځان ټوټې ټوټې کول(۲)د صفائي د پاره ځان دومره مېنـل چې څرمن ئې تکه سره شي د ځان پټ ايستـل، د

ځان کوړک ایستل

**خچڼګکے** :(خ+چُو+ن+کے ) (اَف:پ (قاموس) فاع مذ وا ج: خچونکي (مؤ: خچونکې) تیپله ورکوونکے، تیپله وهُونکے، دبکه کووُنکے

**خچونیا**: - (خ+چُو+ن+ړ+یا ) (اَف:پ (قاموس) ص) و خچتنا

**خچونیا کېدل**: -(اَف) اص ژاوله یا ژوغله ویلې کېدل

**خچه**: - (خ+چه) (اَف:پ (قاموس) ص )د ګولۍ د نشانې نه لرِ شا ن خطا کېدنه

**ــــ کېدل**: - (اَف) اص ګولۍ د نخښې نه لرِ شان خطا کېدل

**خچــه**: - (خَ+چـه) (اَف:پ (قـاموس) اس مـؤ )کچـه کوټـه، قچـه کوټـه، ورکـوټې ګوته، چیچنه ګوته، خچې، خَچۍ مچۍ ګوته

**خچۍ**: - (خ+چۍ ) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ ) و- خچه

**کچۍ مچۍ ګوته**: - (خچۍ +م+چ+ی+ګو+ته ) (اَف:پ اس مؤ) و- خچه

**خچې پچې**: - (خَ+چي+پ+چي ) (پ (خ) ص) ټوټې ټوټې، ذرې ذرې

**ــــ اچول**: -اص ذرې ذرې کول، خچې پچې کول

**ــــ اچېدل**: -اص ذرې ذرې کېدل، خچې پچې کېدل

**ــــ تلل**: -اص ذرې ذرې یا ټوټې ټوټې کېدل

**ــــ کول**: -اص و- خچې پچې اچول

**ــــ کېدل**: -اص و- خچې پچې اچېدل

**خچــے** :- (خ+چَے ) (پ (ب،خ) اس مذ وا ج: خچې) نرے تیرۀ لرګے

**خځځکے** :- (خ+ت+س+ت+س+کے ) (پ اس مذ وا ج: خځځکي ) خځوځکے، خځوزے، د ډوډۍ بکسکے

**خځرکــے** :- (خ+ت+س+ر+کــے ) (اَف:پ (قــاموس) اس مــذ وا ج: خځرکــي ) خاشاک

**خځکے** :- (خَ+ت+س+کے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ ) غوبنه

**خځله**:- (خَ+ت+س+لَه ) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ وا ج: خځلې) د نوکانو د شا د غوښې نه د نیلې ببلېدلو مرض

**خځنـے** :- (خَ+ت+س+ن+ړے) (پ اس مــذ وا ج: خځنــې )(۱)خــس خاشــاک (۲)هسک یسک(۳)ورکوټې شان خلې چې په سترګه کښې پرېوزي

**ــــ اچول**: -اص هسک اچول، هسک ویستل

**ــــ په سترګه کښې پرېوتل**: -اص په سترګه کې خلې اچېدل

**ــــ کېدل**: -اص هسک کېدل

ټپه: جانانه تور چپلې حلال کړه
خځنې وشو په کالۀ دې پاتې شومه!

**ــــ ګټل**: -اص هسک ګټل

**په خځنې کښې وتل** :-اص په هسک کښې راوتل

**خځوځکــے** :- (خ+ت+سُــو+ت+س+کے) (پ اس مــذ وا ج: خځــوځکي) و خځځکې

**خځــوُزے**:- (خَ+ت+سُــو+زے ) (اَف:پ (قــاموس) اس مــذ وا ج: خځــوزي ) (۱)خځوځکے ، کځځکے، د ډوډۍ بکسکے، ډېره وړه ټوټه

**خځوکے**:- (خ+ت+سُو+کے ) (پ اس مذ ) خځوکے، ډېر کم ځیز، بکسکے

**خُدا**:- (خُ+دا) (فا اس معرفه مذ دا) خدا ے، خلوے، الله پاک، لوے ذات

**خدانخواسته**:- (خدا+نَ+خ+وا+س+تَه ) (فا کلمه ) خدا ے مه کړه

**خُداوند**:- (خُ+دا+وَ+ن+د ) (فا اس مذ ) مالک، آقا، صاحب

**خداونـدپاک**:- (خُدا ونـد+پا+ک ) (فـا اس معرفـه مـذ )خدا ے تعالي، الله پـاک خاوند پروردګار،خداوند تعالٰي

**خُداوندي تعالٰي**:- (خداوند+تَ+عا+لا) (فا اس معرفه مذ ) خداوندي پاک

**خدائي**:- (خدا+ئي ) (فا اس مؤ )(۱)خدا ے کېدل، خدا ے والے، خدا ے بندے (۲)صاحبي، مالکي (۳)دنیا (۴) د خدا ے د پاره

ستاسودا مالره سود ده
حـق بــه وائـم خدائي (رحمن بابا)

**ــــ آفت**: -اص ناڅاپي افت، طوفان او سېلاب

**ــــ بلا**: -اص(۱)د خدا ے د طرفه پېښه شوې واقعه (۲)لویه بلا، لو ے مصیبت

**ــــ خبره**: -اص حقه خبره د خدا ے د لاري خبره، د انصاف خبره

**ــــ خدمتګار**: -اص(۱)هغـه ځوک چې محض د خدا ے د رضا د پاره د خلقو خدمت کوي، بې طمع خدمتي (۲) د یو تحریک نُوم

**ــــ سړے**: -اص(۱)نېک بنده، پرهېزګار بنیادم (۲)بې له طمع د چا په کار راتلونکے بنیادم

**ــــ کار**: -اص هغه کار چې د خدا ے د پاره کولے شي، بې طمعې کار

**ــــ کارونه**: -اص د خدا ے چارې، د الله پاک د طرفه

**ــــ لار**: -اص(۱)شریعت (۲) اولسي لار، عامه لار، بادشاهي لار

**د خدائي دعوېدار**: اص هغه بد بخت انسان چې ځان خدا ے بولې

**خـدائي خـوار**:- (خَدائي+خ+وا+ر) (فـا ص مـذ (مـؤ وا: خـدائي خـواره ج: خـدائي خواري) خانه خراب، اواره، ذلیل، خدا ے وهلے، شرمېدلے

**خدائي فوځدار**:- (خدائي+فَ+و+ځ+دا+ر) (فا اس ص مذ وا ج: خدائي فوځداران (مؤ وا: خدائي فوځداره ج: خدائي فوځداري )مُحتسب، ډنډه مار هغه ځوک چې بې تپوسه ځان ذمه وار شماري

**خداے**: -(خُ+دا+ ے ) (پ اس معرفه مذ ) خداوندي پاک الله پاک، خلائے

بې له خدایه نۀ لري مانګے ملاح ځوک
دا کشتې ځي بې لنـګـر او بې طناب (علي خان)

**ــــ اسره کول**: -اص(۱)د خدا ے په ډاډ په څۀ کار لاس پورې کول، د خدا ے په نامه چا ته بغېر له پیژندګلو د مدد سوال کول

**ــــ اخستلے** :-اص مړ شوے، خدا ے خپل کړے

**ــــ اخستل**: - (اَف) اص قسم خوړل، سوګند کول

**ــــ بخښلے**: -اص مرحم، چې خدا ے رحم پرې کړے وي، مړشوے

**ــــ بلل**: -اص خدا ے یادول، خدا ے ته زاري کول

**ــــ به خېر کړي**: -اص خدا ے به فضل وکړي، کار به دې سم شي، خدا ے به دې د کار سمون برابر کړي، فکر مه کوه کار به دې وُشي

**ــــ په امانې کول**: -اص (۱)خدا ے ته سپارل (۲) په مخه ښۀ وئیل، رخصتول

**ــــ په خپلو کارونو ښـۀ پـوهېږي**: -اص الله پـاک د خپلو کړو پـه مصلحت ښـۀ خبر دے، خدا ے چې څۀ کوي په هغې کښې خبر وي

**ــــ پـه مېنځ کښـې کـول**: -اص(۱)د خدا ے روي اچـول، خدا ے ګـواه کـول(۲) د خدا ے په نوم په څۀ خبره یو خولۀ کېدل(۳)اتبار کول

**ــــ پېژندل**: -اص په خدا ے یقین لرل، د خدا ے عبادت کول،نېک جوړېدل

**ــــ پېژندلے** :-اص ټکرې، هغه ځوک چې د خپلو بدو عملونو په وجه په دې دنیا خدا ے پاک په عذاب کړے وي، په تکلیفونو کښې ګېر

**ــــ تـه زاري کـول**: -اص خدا ے تـه سـوالونه کول،خدا ے تـه عـاجزي کـول ،د خدا ے نه دُعا غوښتل

**ــــ ته سپارل**: -اص(۱)د خدا ے په حواله کول،

مـګر ځان و خدا ے ته وُسپاري امان شي
ګـنـــه بـــــل خـواته د هېچا امان نشته (رحمان بابا)

(۲)د کمزورتیا په وخت د ظالم دظلم بدل د خدا ے نه غوښتل (۳)صبر کول

**ــــ ته ګرځېدل**: -اص (۱)خدا ے ته رجوع کول، نېکۍ تـه مخه کـول، خدا ے ته ماتې (۲) مړ کېدل، خدائي لار اختیارول،

**ــــ ته ګوره**: -اص د خدا ے د پاره، د خدا ے له رویه، د خدا ے روئي ورکول

**ــــ ته ماتې**: -اص و- خدا ے ته ګرځېدل

**ـــ ته مخ اوبنده ته شا کول:** -اِص حقه خبره کول، په خدائے خبرو کښې د چا رو رعایت نۀ کول

**ـــ ته اوګوره:** -اِص د خدائے روئي وُمنه، د خدائے د پاره وکړه، د خدائے نه ویرېږه

**ـــ جاتي:** -اِص خدائے راضي، د خدائے د پاره، دالله د مرضۍ د پاره، بې رُو رعایته

**ـــ حاضر ناظر دے:** -اِص خدائے وینې ګوري، خدائے په هر څۀ خبر دے، د خدائے نه هېڅ پټ نۀ دي، د خپلې خبرې د رښتیا والي یقین ورکولو په وخت کښې وئیلے کېږي

**ـــ خبر:** -اِص خدائے ته معلومه ده، خدائے زده، معلومه نۀ ده

وریځې غونډې شوې چې تندر جوړ کړي

خـــدائے خبر چېرتـه اشیانې جوړېږي (میا تقویم الحق)

**ـــ خبر شه:** -اِص خدائے تـه پتـه ده، خدائے پـوهېږي، معلومـه نـۀ ده، خبر نۀ یو، بویه چې

**ـــ خپل ګوتې ښۀ پېژني:** -اِص خدائے د خپل ګنهګار یا خپـل مجرم نه ښۀ خبر دے او ورله سزا هم ورکوي

**ـــ خپلـول:** -اِص (۱) د خـدائے حکـم منـل، خـدائے یومنـل (۲) د خـدائے اخستل، دنیا پرېښول

**ـــ کول:** -اِص خدائے یادول، د خدائے ذکر کول

**ـــ کوه:** -اِص خدائے ذکر کوه، خدائے یادوه

**ـــ خوړل:** - (سو) اِص قسم خوړل، لوړل، سوګند پورته کول

**ـــ خوشته کنه:** -اِص خدائے خو موجود دے، د خدائے خو وَس رسېږي، دا بیان د بې وسۍ او مجبورۍ په وخت کولے شي، خدائے خو هر څۀ ویني کسي، خدائے په هر څۀ خبر دے

**ـــ دپاره:** -اِص (۱) د خدائے په روئي (۲) د خدائے په رضا (۳) مفت، لیـه، ویړیا، بې پیسو، هسې

هر سړے تر خپل مطلبه پورې یار دے

ما د خـدائے د پـاره یـار لیدلے نۀ دے

**ـــ د پاره:** -اِص د خدائے روئي وُمنه، د خدائے په خاطر دا کار اوکړه

**ـــ ورسره پوهه شه:** -اِص خدائے د خپـل عمـل سزا درکړه. خدائے د دې ظلم بدل درنه واخله

**ـــ دورانـدې اودریـدل:** -اِص (۱) د قیامت پـه ورځ د الله پـاک پـه دربـار کښـې پېښېدل او د خپلو عملونو جزا سزا موندل

**ـــ دوړاندې پیش کېدل:** -اِص د قیامت په ورځ د خدائے په مخ کښې حاضرېدل او د خپل عملونو جزا سزا موندل

**ـــ دوه:** -اِص خدائے ته اوګوره، د زناناؤ قسم

**ـــ دې ایمان ته خېر کړه:** -اِص دا د دُعا په ډول وئیلے کېږي، خدائے دې په سمه لار کړه، خدائے دې عقیده برابره لره، اخره خاتمه دې ښۀ شه

**ـــ دې پـه نېکـې مـل شـه:** -اِص خدائے درسره ښۀ وکړه، خدائے د نېک عمـل توفیق درکړه، خدائے دې ملګرے شه، اکثر خلق ئې د تکیه کلام په طور وائي.

**ـــ دې خېـر پـېـش کـړي:** -اِص خـدائے دې خېـر کړي، خدائے مـو دافـت نـه ساته، خدائے دې دا تکلیف لرې کړي.

**ـــ دې خېر کړي:** -اِص و ـــ خدائے دې خېر پېش کړي

**ـــ دې راته مخ نۀ ښئي:** -اِص خدائے دې راسره ملاقات نۀ وکړي، خدائے مو ترې ساته، خدائے ئې راباندې مخ نۀ لګوه، خدائے دې راته نۀ ښئي

**ـــ دې راته نۀ ښئي:** -اِص خدائے دې راته مخ نۀ ښئي

**ـــ دې لري:** -اِص خدائے دې ژوندے ساتي

**ـــ دې لـوے کـړه:** -اِص (۱) خـدائے دې ځـوان کـړه (۲) خـدائے دې ترقـي لویـه کړه، خدائے دې عزتمن کړه، خدائے دې ستر کړه

**ـــ دې مل شه:** -اِص (۱) خدائے دې ملګرے شه، خدائے درباندې مهربـان شـه، د خدائے په امـان کښې اوسې، (۲) دا کلمـه اکثـر د سـترې مشـي پـه ځـواب کښې وئیلې شي

**ـــ دې نۀ کړي:** -اِص خدائے دې داسې نۀ پېښـوي، خدائے مـو دې د دې پېښـې نه وُساتي، خدائے مه کړه

**ـــ دې واخله:** -اِص خدائے دې مړ کړه

**ـــ دې وُبخښي:** -اِص خدائے دې ګناهونـه معـاف کـړي، خدائے دې مغفرت ورکـړي، خدائے دې د قبر او قیامت د سـختو نـه وُسـاتي، خدائے دې ګناهونه ورته معاف کړي

**ـــ دې ورسره پوهه شي:** -اِص خدائے دې سزا ورکړي

**ـــ دې ورسره په نېکې مال شي:** -اِص خدائے دې ورسره ملګرے شي، خدائے دې ترې رضا شي، خدائے دې پرې مهربانه شي

**ـــ دې ورسـره ښـۀ وکـړي:** -اِص خدائے دې کـار سـم کـړي، خدائے ورسـره پـه نېکۍ مل شه، خدائے دې د دې نېکۍ اجر ورکړي

**ـــ دې ورسلمه شي:** -اِص خدائے دې په خپله د دې عمـل سزا ورکړي، خدائے ورسره پوهه شه

**ـــ دې اوکـړي:** -اِص خـدائے دې داسې پېښـه کـړي، خـدائے دې دا کـار برابـر کړي، خدائے دې مهربان شي

**ـــ دې ووُهه:** -اِص خدائے دې سزا درکړه

**ـــ رازق ګڼل:** -اِص خدائے روزي رسان شمارل، رزق د خدائے د طرفه ګڼل

خـدائے رازق ګڼي او رزق ګټي کسبه

په دا شناخت و ځان ته وائي حق شناس (رحمن بابا)

**ـــ راضي:** -اِص و خدائے جاتي

**ـــ رټلے:** -اِص شیطان، ابلیس

**ـــ روزي رسـان دے:** -اِص خـدائے رزق ورکـوونکے دے، د رزق ورکولـو ذمـه واري خدائے پاک اخستې ده.

**ـــ زده:** -اِص و خدائے خبر

خدائے زده څۀ بازي شي پېښه

عـاشــوره شي کــه اخـــتـر (رحمن بابا)

**ـــ ساتلے:** -اِص (۱) خدائے بچ کړے، (۲) خدائے پیدا کړے او لوے کړے، تـۀ زمـا وبې کسۍ ته نظر مه کړه

خدائے ساتلے لکه ګنج په بیابان یم (رحمن بابا)

**ـــ ساتندوے دے:** -اِص (۱) خدائے پـه امـن کښې ساتوُنکے دے، (۲) خدائے روزي ورکووُنکے دے.

**ـــ سپېرۀ کړے:** -اِص بدبخته، بدنصیبه، خدائے خوار

**ـــ سره توقې کول:** -اِص خدائے ته د دوکې ورکولو کوښښ کول، ځان تـه دوکـه ورکول

**ـــ شاهد دے:** -اِص خدائے ګواه دے خدائے وینې ګوري، خدائے پـه هـر څۀ خبر دے

**ـــ شته:** -اِص خدائے خو موجود دے، خدائے خو ئې وینې کسي، خدائے شته چې

**ـــ شته چې:** -اِص و خدائے شته

**ـــ شته کارونه ئې شته:** -اِص که چېرې داسې وُشول، کېدے شي چې داسې چـل اوشي

**ــــ شرمولے**:-اِص بې عزته شوے، د خلقو د خندا شوے، خدا ے په لعنت کړے

**ــــ شړلے**:-اِص خدا ے رټلے لکه چې شېطان ئې د خپل دربار نه ويستلے دے، خدا ے ورته په قهر شوے

**ــــ کول**:-اِص خدا ے تـه منظوره وه، د خدا ے شان ؤ، خدا ے داسې اوکړل، داسې پېښه شوه

**ــــ گواه دے**:-اِص خدا ے شاهد دے،

د منصب پــه اخستۀ څـۀ دلگـير نـۀ شـۀ
د خوشحال خاطر خوشحال دے خدا ے گواه دے

**ــــ مونډل**:-اِص خدا ے ته رسېدل، د خدا ے نېک بنده جوړېدل

**ــــ مه که**:-اِص خدا ے دې داسې اونۀ کړي، داسې دې نۀ شي پېښه

**ــــ مې دې غاړه نۀ نيسي**:-اِص خدا ے مـو دې پـه دې وبـنـا نـۀ گنهگاروي، خدا ے دې راته د دې معافي اوکړي

**ــــ مې دې نۀ گرموي**:-اِص خدا ے مـه کـړه چې پـه چا ظلم اوکړم، خدا ے دا توفيق مه راکوه چې د چا سره بد وکړم

**ــــ مې دې نۀ گنهگاروي**:-اِص خدا ے مې دې د گناه نه اوساتي، خدا ے دې راته معافي اوکړي، خدا ے دې د گناه توفيق نۀ راکوي

**ــــ مې دې وُساتي**:-(اِص) خدا ے مې دې بچ کړي، خدا ے مې دې په امان کړي

**ــــ نه پناه غواړه**:-(اِص) خدا ے نه امان غواړه

**ــــ نيولے**:-(اِص) د خدا ے په قهر او غصه اخته

**ــــ واحد شاهد دے**:-اِص خدا ے يو دے، خدا ے بل شريک نۀ لري، خدا ے هر څۀ وينې کسي

**ــــ ورسپلمه کول**:-اِص خدا ے ته سپارل، د سزا د پاره خدا ے نه پرېښول

**ــــ ورسپلمه کېدل**:-اِص خدا ے تـه سپارلے کېدل، خدا ے تـه سپارلے، د سزا د پاره خدا ے ته پرېښولے کېدل

**ــــ اوساتلو**:-اِص (۱)خدا ے بـچ کـړو، خدا ے پـه امـن کـړو، (۲)خدا ے روزي ورکړه

**ــــ وُمنه**:-اِص د خدا ے نه اوېرېږه، د خدا ے پـه حکم عـمـل وکـړه، خدا ے تـه وگوره

**ــــ وهلے**:-اِص (۱)د خدا ے په غضب اخته شوے، شرمېدلے (۲)بـد معـاش، بـد کاره

**ــــ يادول**:-اِص (۱)د خدا ے عبادت کول، (۲)په خدا ے تکيـه لرل

**خـدائے يـنـدي**:- (خـدا ے+يَ+ن+دېي) (پ ص) د خـدا ے لـه طرفـه، د لـوے څښتن له مخې، خلاے يندي

**ــــ کار کول**:-اِص د خدا ے د رضا د پاره څۀ کار کول، د طمع لالچ نه بغير کار کول

**ــــ کانړي پربوتـل**:-اِص غيبـي مصيبت او افت پېښېدل، خدا ے يندي کـانړي راوريدل، په ناڅاپي مصيبت کښې راگېرېدل

**ــــ کانړي راوريدل**:-اِص و خدا ے يندي کانړي پربوتل

**ــــ وېنا کول**:-اِص د پرې جيني نه بغير حقه او صفا خبره کول

**پــه خـدائے**:-اِص خـدا ے گـو، پـه خـدا ے چـې، د قسـم او سـوگنده پـه ډول استعمالېږي

**په خدائے به شي په تابه شي**:-اِص دا کار به د خدا ے په فضل صرف تۀ کوې دا په هغه وخت وئيلے کېږي چې يو کس خپل څۀ کار د بل چا پـه ذريعـه ويستـل غـواړي، منت زاري کـول، (۱)د خدا ے پـه اسره کـار شـروع کـول(۲)پـه خدا ے باور لرل

**په خدائے چې**:-اِص په خدا ے، په خدا ے گو

**په خدائے سپارل**:-اِص (۱)خدا ے ته حواله کول(۲)رخصتول

**په خدائے سپارلے**:-اِص (۱)خدا ے ته حواله کړے (۲)رخصتول کړے

**په خدائے گو**:-اِص په خدا ے قسم چې، خدا ے گو، والله چې، خلوچې، خلاکې

ما خوب ليدۀ په خدا ے گو چې زۀ تۀ سره پخلا يُو
خــوږي خــوږي خـبرې د زړۀ حال وربله وايو (خوشحال خټک)

**توکل په خدائے**:-اِص پـه خدا ے اسره، د څۀ کـار د کـولـو پخـه اراده، څۀ کـار د انجام نه بې خبره شروع کول، کار شروع کول

**د خدائے بخشش**:-اِص د خدا ے مهرباني، د خدا ے فضـل، د خدا ے کرم، د خدا ے ورکړه او فضل

**د خدائے بلا**:-اِص (۱)خدا ے بلا، خدائي افت، (۲)ډېر زورور (۳)د کـار ايسـتلو د پاره هر قسم چلول کوونکے (۴)ډېر وران بنيادم

**د خدائے بنده**:-اِص (۱)نېک سړے، ښۀ بنيادم (۲)په سړيه! (۳)ازاد بنيادم

**د خدائے بې انصافه**:-اِص (۱)ډېر ظلم (۲)په سړيه!

**د خدائے په امان**:-اِص د خدا ے پـه حوالـه، پـه مخـه دې ښـه، خدا ے دې سلامت ساته

**د خدائے په جات**:-اِص جگې جگې، د خدا ے په نوم، د خدا ے د پاره

**د خدائے په حواله**:-اِص و د خدا ے په امان

**د خدائے په خاطر**:-اِص د خدا ے د پاره، د خدا ے په روئي

**د خدائے په خدائي کښې**:-اِص د خدا ے په بادشاهي کښې په گرده دنيا کښې

**د خدائے په در قبول**:-اِص (۱)خدا ے ته منظور (۲) نېک، پرهېزگار، ولي الله

**د خدائے په ذات قسم دے**:-اِص د خدا ے پـه لـوئي والي قسم، د خدا ے پـه نوم قسم

**د خدائے په قهر ککړ شي**:-اِص د خدا ے په غضب کښې گېر شي

**د خدائے په کرم**:-اِص د خدا ے په فضل تپه

د خدا ے کرم چې په چا اوشي
داسې کار اوشي چې په خيال کښې نۀ راځينه!

**د خدائے په لار تلل**:-اِص په حقه لار تلل، په شروع سم کار کول، رښتيا وئيل

**د خدائے په لار کښې**:-اِص د خدا ے د پاره، په حقه لار کښې

**د خدائے پـه مخ کښې**:-اِص د خدا ے پـه وړانـدې، خدا ے تـه مخـامخ، د قيامت په ورځ

**د خدائے په نامه**:-اِص (۱)د خدا ے د پاره(۲) مفت بې بدله، خدا ے جاتي،

**د خدائے په يادو کښې**:-اِص ښۀ سړے، نېک بنده

**د خدائے په يادو کښې راتلل**:-اِص (۱)ښۀ سړے جوړېدل(۲)بيمارېدل، د خدا ے په يادو کښې کېدل

**د خدائے يادو کښې کېدل**:-اِص و د خدا ے په يادو کښې راتلل

**د خدائے جهان**:-اِص (۱)د خدا ے دنيا (۲)گڼ خلق، ډېر خلق، دلـې دلـې، کـوټې کوټې، د خدا ے دلې، د خدا ے کوټې

**د خدائے چارې**:-اِص د خدا ے کارونه، د خدا ے کړۀ

**د خدائے د پاره که**:-اِص (۱)شېطان، بد عمله کس (۲) کافر

**د خدائے د طرفه**:-اِص د خدا ے د لوريه، خدا ے ته منظوره، د خدا ے په حکم

**د خدائے د لوريه**:-اِص د خدا ے د طرفه

**د خدائے دلې**:-اِص ډېر زيات څيز، کوټې کوټې

**د خدائے دمامې**:-اِص (۱)د خدا ے په نوم، د خدا ے د پاره (۲)مفت، بې پېسې بې ټکې، خېراتې

**د خدائے دوست**:-اِص (۱)رسول کريم صلي الله عليه وسلم (۲)پـاک او بـزرگ سړے

**د خدائے رضا**:-اِص (۱)د خدا ے مرضي، د خدا ے خوښه،خدا ے ته منظوره (۲)بې غرضه، بې طمع

**د خدائے روئي منل**:-اِص (۱)د خدا ے د پاره کار کول،د خدا ے په نوم څۀ کار ته تیاربدل(۲)د چا منت زاري قبول

**د خدائے روئي وراچول**:-اِص د خدا ے قسم ورکول،د خدا ے نوم ورته ورانديږ کول،د خدا ے په خاطر څۀ کار ته تیارول، یا د څۀ کار نه منع کول

**د خدائے شان**:-اِص د خدا ے لوئي، د خدا ے فضل، د خدا ے کرۀ، د خدا ے قدرت

**د خدائے غضب**: -اِص (۱)د خدا ے قهر(۲)طوفان، زلزله، سېلاب(۳)ظلم زياتے

**د خدائے ظلم**:-اِص ډېر ظالم،زيات ظالم

**د خدائے فضل**:-اِص د خدا ے مهرباني، د خدا ے کرم،د خدا ے رحم

**د خدائے قجير**: -اِص ښۀ ځوان، ښکلے ځوان

**د خدائے قدرت**:-اِص د خدا ے شان

**د خدائے قهر**:-اِص و- د خدا ے غضب

**د خدائے کارونه**:-اِص د خدا ے کرۀ ـ دا د اکثر د عـوامي قصې په سر کښې وئيلې شي ځينې خلق کارونه د خدا ے وو هم وائي

ټپه د خدا ے کارونه ټول د خېر دي

بنده له ښائي چې پرې شکر وباسينه

**د خدائے کرم**:-اِص د خدا ے فضل

**د خدائے کرۀ**:-اِص د خدا ے کارونه

غم د چــا پــه ځــان پېرزو د ے بارې څۀ کا

چې د خدا ے په کرۀ کښې نۀ لرې قدرت څوک (رحمن بابا)

**د خدائے کرۀ اټکلول**: - (اَف) اِص په خدا ے توکل کول،د خدا ے په کړو راضي کېدل

**د خدائے کوټې**:-اِص و-د خدا ے دلې

**د خدائے کور**: -اِص (۱)بيت الله، کعبه شريفه،(۲)جماعت، مزدک

**د خدائے مخلوق**:-اِص (۱)د خدا ے پېداوښت(۲)ډېر زيات خلق

**د خدائے ملامتونه**:-اِص ډېر زيات تهمتونه، بېحده، زياتې ملامتې،

د خــدائي ملامتونه، ګوښې ګوښې تهمتونه

په عشق کښې له وګړيه ما څۀ لړ نۀ دي زغملي (خوشحال)

**د خدائے ناترسه**:-اِص ډېر ظالم، هغه څوک چې زړه ئې په چا ببخي نۀ سوځي

**د خدائے ناراست**:-اِص ډېر ناراست، سستـه بـلا،د اکبر بادشاه لټ، پرسمن، بادشاهي لټ

**د خدائے نوم اخستل**:-اِص خدا ے يادول

**د خدائے نه خېر غوښتل**: -اِص د خدا ے د فضل او کرم دُعا غوښتل

**د خدائے نه سوال کول**:-اِص خدا ے ته زاري کول،د خدا ے نه غوښتل

**د خدائے نه غوښتل**: -اِص خدا ے ته سوال کول

**د خدائے نه وېره**:-اِص د خدا ے ډار، د خدا ے خوف

**د خدائے ورکـړه**: -اِص د خدا ے فضـل، د خدا ے مهرباني،کـه د خدا ے خوښه وه، کـه خېر وي ان شـاء الله تعـالي، کـه خدا ے تـه منظوره وه، که د خدا ے خوښه وه

**که د خدائے رضا وي**:-اِص که د خدا ے خوښه وي، که خدا ے ته منظوره وي

**خـدائے پـاک**: (خدا ے+پا+ک) (پ اِس معرفـه، مـذ وا ) الله تعـالي خدا ونـدې پاک، پاک پروردګار

**ــــ پرې ښۀ خبر دے**:-اِص الله تعالي تـه پتـه ده،الله تـه ښـۀ پتـه ده، د دې کـار نـه خدا ے خبر د ے

**ــــ خو اوري**:-اِص خدا ے پاک د هر چا هره خبره هر وخت اوري

**ــــ خو ويني**: -اِص الله پاک د هر څۀ نه خبر د ے او د هر چا کړۀ ورته څرګند دي

**ــــ خو ويني ګوري**:-اِص الله پاک خو حاظر ناظر د ے، هغـه هر څوک ويني او د هر چا د کړو نه خبر د ے

**خدائے تعالي**:- (خدا ے+تَ+عا+لا) (فا اس معرفه مذ )خدا ے پاک، الله تعالي

**خدائے خواږه**:- (خ+دا+ ے+خ+وا+ژه يا ګـه ) (اَف:پ (قـاموس) اس مـذ) يـو بوټے چې اکثـر پـه شـوتلو کښـې راټـوکېږي د شـمکې پـه شـان پـاڼې ئـې وي، زېړګل نيسي او کچه خوږلے شي

**خدائے زده**:- (خُ+دا+ ے+ز+دَه ) (پ کلمه ) خدا ے پوهېږي، خدا ے ته پته ده، خدا ے خبر

خدا ے زده چې تۀ يار د کُوم يوۀ ئې

هـــر طرف ياران دي صد هزارستا (رحمن بابا)

**خدائے ګو**:- (خدا ے+ګو ) (پ کلمه )په خدا ے قسم، خلو ے چې

سل دې سره کښېني واړه يـــو تـــر بل بهترې

خدا ے ګو که به زۀ کرم تا په واړو کښې غلطه (خوشحال )

**خداينـــدي**:(خُــدا+ عَ+ن+دي ) (پ (ب،خ، ص )(۱)د خـــدا ے د طرفـــه (۲) ناڅاپي، غيبي

**ــــ خبره**:اِص د خدا ے د پاره وېنا ، حقه خبره

**ــــ کار**: -اِص(۱)د خدا ے د طرفه پېښ شو ے کار(۲)د خدا ے د رضا د پاره کړ ے کار(۳)مفت کار (٤) د ښېګړې کار

**خدايه**:- (خ + دا+ يَه ) ( پ حرف ندا ) خدا ے پاک ته د سوال زاري کولـو پـه وخت غږ

ټپه:- خدايه په داسې اور دې وُسوم

نۀ ئې لوګے شته نۀ ئې تاؤ چاله ورځينه!

**خدايه پاکه**: -اِص په خدايه! يه خدايه پاکه!ا ے الله يا پاکه پروردګاره

**لويه خدايه**:-اِص خدا ے پاک ته د زاري او منت په ډول وئيلے شي

لويه خدايه لويه خدايه

ستا په مينه په هر ځايه (بېبۍ نېکۀ)

**يه خدايه**:-اِص ا ے خدايه، ياربه

**يه خدايه پاکه**:-اِص يا پاکه پروردګاره

**خدري**:- (خ+د+ري ) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ ) خواجه خدري، چوټي، هغـه مقرره ډوډۍ چې غوبه ئې د کورونو نه جمع کوي

**خـــدړ**:- (خ+د+ړ) (اَف:پ (قـاموس) اس مــذ )ســپېرۀ مخـے ،خــر مخــے، خوار ،کمزور ے، مانده

**خُدښکه**: (خُ+د+ش+کـه يـا خُ+د+خ+کـه ) (اَف:پ (قـاموس) اس مـؤ )مهمـل شان قسم

**خَدشـه**:(خَ+د+شَـه ) (فـا اِس مـؤ وا ج: خدشـې)کفر، انديښـنه، يـره، خـوف، شک شبه

**خِـدمت**:-(خ+د+مَ+ت ) (ع اِس مـذ وا ج: خدمتُونـه )(۱)خـذمت، تابعـداري، نوکري

دا کاغذ مې څۀ قابل ستا د نظر د ے

طفلِ شب د مخدومـــانو په خدمت لاړ (علي خان)

**ــــ اچول**:-اِص خدمت ښئيل، خدمت وئيل، د څۀ کار کولو وېنا کول، کـار ښئيل

**ــــ بربادول**:-اِص خدمت په سيند لاهو کول، خدمت ضائع کول، خدمت پـه اوبو وړل

**ــــ په اوبو وړل**:-اِص و- خدمت بربادول

**ــــ په سيند لاهُو کول**:-اِص و- خدمت بربادول

**ـــ ته بېړې وهل**: -اص خدمت ته تیارېدل، اکثر خدمت کوونکې، د پرتوګ پائنڅې اوچتې کړې چې چابک تلې راتلې شي

**ـــ ته لستوڼي نغښتل**: -اص خدمت ته متې نغښتل، خدمت ته تیارېدل، خدمت ته ملا تړل، په خدمت لاس پورې کول

**ـــ ته متې نغښتل**: -اص و خدمت ته لستوڼي نغښتل

**ـــ ته وُدرېدل**: -اص خدمت ته پاڅېدل، تابعداري کول، د حکم انتظار کول

**ـــ راتلل**: -اص کار پېښېدل، چاته د خدمت حاجت پیدا کېدل چا ته د څهٔ کار د پاره اړتیا کېدل

**ـــ زبادول**: اص د خدمت احسان خېژول، د خپل کړي خدمت بدل غوښتل

**ـــ ښئیل**: -اص و خدمت اچول

**ـــ کول**: - اص خذمت کول، تابعداري کول، نوکري کول، کار کول

**ـــ کېدل**: -اص خذمت کېدل، تابعداري کېدل، نوکري کېدل، کار کېدل

**ـــ نه ځان پټول**: -اص د کار نه یو خوا بل خوا کېدل، د خدمت نه پټېدل، د خدمت نه ځان ژغورل

**ـــ وئیل**: -اص خدمت ښئیل، د څهٔ کار په باره کښې وینا کول

**په خدمت ځان اوچتول**: -اص په خدمت ځان پورې باسل، په خدمت ځان عزتمن کول، په خدمت کامیابي حاصلول، په خدمت ترقي موندل، د تابعدارۍ صله موندل، په خدمت عزت مُوندل

**په خدمت ځان پورې باسل**: -اص و - په خدمت ځان اوچتول

**په خدمت ځان سترے کول**: -اص زیات خدمت کول، بې کچه ډېره تابعداري کول، په خدمت ځان وژل، په خدمت ځان ویلے کول، په خدمت کښې منډې وهل،

**په خدمت ځان عزتمن کول**: -اص و - په خدمت ځان اوچتول

**په خدمت ځان وژل**: -اص و - په خدمت ځان سترے کول

**په خدمت سترګې ویستل**: -اص (۱) په خدمت کښې تېز ګرځېدل، په خدمت کښې ځان بوختول، په خدمت کښې ځان ښکاره کول (۲) په خدمت کښې خپل ځان په خپله ورګډول

**په خدمت شرمول**: -اص د چا بد نیتي یا ظالم بنیادم دومره خدمت کول چې هغه په خپلو کړو پښېمانه شي، د چا ډېر زیات خدمت کول

**په خدمت عزت موندل**: -اص و - په خدمت ځان اوچتول

**پـه خـدمت کښې ګرځېـدل**: -اص د چا تابعـداري کـول، د چـا د خدمت د پـاره وړاندې روستو کېدل، د چا سره د خدمت کولو د پاره نژدې نژدې کېدل

**په خدمت کښې منډې وهل**: -اص و - په خدمت ځان سترے کول

**په خدمت کښې وُدرېدل**: -اص تابعداري کول، خدمت کول

**په خدمت لاس پورې کول**: -اص خدمت شروع کول، تابعداري کول، کار شروع کول

**په خدمت په چا مخ کول**: -اص په چا د خدمت احسان ور اړول

**د خدمت احسان خېژول**: -اص و - په خدمت په چا مخ کول

**د خدمت بدل غوښتل**: -اص د خدمت صله غوښتل، د خدمت انعام غوښتل

**د خدمت جوګه کېدل**: -اص (۱) ورکوټے ماشوم دومره لوئېدل چې لږ د کار روزګار قابل شي (۲) د خدمت اهلیت پیدا کېدل، د خدمت توان پیدا کېدل، د خدمت قابلېدل

**خِدمت ګار**: - (خدمت+ګا+ر) (فا اص ص مذ وا ج: خدمت ګاران (مؤ وا: خدمت ګاره ج: خدمت ګارې) خدمتي، تابعدار

خدمتګار که ئې قدم په اخلاص نهٔ ږدي
د خـاونـد ظلم لا ډېر په خدمتګار شۀ (علي خان)

(۲) هغه نوکر چې د حجرې جارو کول، اوبهٔ راوړلو وغېره کار ورته حواله وي

**خدمت ګاري**: - (خدمت+ګا+ري) (پ اس مؤ) نوکري، تابعداري

**خِـدمتي**: - (خ+د+مَ+تـي) (پ اس) (۱) و- خـدمتګار (۲) زیـات خـدمت کـوونکے بنیادم

**خدنګ**: (خ+دَ+ن+ګ) (پ اس مذ وا ج: خدنګُونه) (۱) غشے

هم په دا چې ئې پرهار برخښېن نهٔ وي
اُوښکې نهٔ شي ځکمیان خدنګ د زړهٔ

(۲) نبغ اوچت ختلے چنار (۳) لوړ ځوان

**خدوخال**: - (خَ+دو+خا+ل) (فا ص) کرهٔ وړهٔ

چې شمس کـولـــو ذکر یاره ستا د خدوخال
ښائسته غوندې غزل ترے نه په خپله جوړېدو (شمس الزمان شمس)

**خدیجه**: - (خَ+دي+جَه) (ع اس معرفه مؤ) (۱) د رسول کریم صلي الله علیه وسلم اولنۍ بي بي چا چې په ښځو کښې د ټولو نه اول اسلام راوړے وهٔ

**خـډل**: (خ+ډَ+ل) (اَف:پ (قـاموس) اس مـذ (مـؤ وا: خډلـه ج: خـډلې) غـټې سپے، خنډیل

**خډلبـډل**: (خ+ډَ+ل+ب+ډَ+ل) (اَف:پ (قـاموس) ص) شـورب، بـې ډولـه، ډډ بډ، پرسېدلے

**خر**: - (خَ+ر) (پ اس مذ وا ج: خرهٔ خرونه (مؤ وا: خره ج: خرې) (۱) یو ځناور

مخ هغه چې ئې ستاینه درست عالم کا
نـــۀ هغـــه چې لـکـه ستائي دلال خر (خوشحال)

(۲) کم عقل، بې عقله (۳) ضدي

د خوشحال خبرې واړه نصیحت وي
مګر خر وي چې په زړهٔ ئې اثر نهٔ شي

**ـــ په خټه کښې ننبتل**: -اص

خر په خټه کښې ننبتل، خر په خټه کښې ښخېدل

**ـــ په خټه کښې ډوبېدل**: -اص (۱) خر پـه خټې کښې ننبـتل، خر پـه خټـه کښې ښخېدل، څهٔ کار ایسارېدل چاته حاجت پېښېدل، (۲) ګېرېدل ننبتل

د خپل عشق پــه پاکبازۍ شکر ګزار یم
چې مې نهٔ شو خر په خټه د عصیان ډوب (حمید)

**ـــ په خټه کښې ښخېدل**: -اص و - خر په خټه کښې ډُوبېدل

**ـــ په خټه کښې ننبتل**: -اص و - خر په خټه کښې ډوبېدل

**ـــ ته امېل په غاړه کول**: -اص (۱) نا اهل سړي ته ذمه واري ورسپارل

**ـــ ته با با وئیل**: -اص د مطلب ویستلو او خپل کار چلولو د پاره خوشامنده کول

**ـــ ته خوید اچول**: -اص نا اهل او نا پوهه سړي ته څهٔ کار ورسپارل

**ـــ خصي کول**: -اص بې فائدې او بې بُوده کار کـول، پـه څهٔ کـار هسـې ځـان سترے کول

**ـــ دېدل**: -اص (سو) د وړو یوه لوبه چې په یو بل وار پـه وار د خرهٔ پـه شـان سورلي کوي

**بې لکۍ خر**: -اص کم عقل، بې وقوف

په مادر کښې ئې بلا ده که په پلار کښې
پې دا هسې تـــرې زېږېږي بې لکۍ خر (خوشحال)

**پـر خپـل خـرهٔ سپرېدل**: -اص پـه خپـل ضـد او کـم عقلتـوب ټینـګ ودرېـدل، د ناجائزې خبرې نه نهٔ اوړېدل، په خپل خرهٔ سورېدل

**په خر سور**: -اص (۱) څوک چې په خرهٔ سور وي (۲) د شرمولو د پاره څوک په خرهٔ سورول

لکه څوک چې په خر سور او مخ ئې تور کا
زهٔ هم هسې تـــر ښځنتن پــورې بې اب یم (رحمن بابا)

**په خپل خرهٔ سورېدل**: -اص و - پر خپل خرهٔ سپرېدل

**پر خرۀ سپړول**:-اص شرمول، بې عزته کول، په خرۀ سورول

**په خرۀ سورول**:-اص و –پر خرۀ سپړول

**په خرۀ سورېدل**:-اص(۱)ضد کول، (۲) شرمېدل

**خبره د خرۀ تيز ګڼل**:-اص خبره څۀ نۀ شمارل، د چا خبرې ته غوږ نۀ کښېښول، خبره معمولي شمارل او ځان پرې نۀ خبرول

**د خرو تبې کېدل**:-اص ناشولتې وئيل، داسې خبرې کول چې اثر ئې ډېر بد وي زياته ناجائزه خبره کول

**د خرو تبې تړل**:-اص بې ځايه کار کول، فضول کار کول بې فائدې کار ته لاس اچول

**د خرۀ په لکۍ سپړېدل**: –اص (۱)په خپل ضد وُدرېدل، د خرۀ په لکۍ سورېدل، (۲) زياته شيطاني کول بې حيا کېدل

**د خرۀ په لکۍ سورېل**:-اص و –د خرۀ په لکۍ سپړېدل

**د خرۀ جر**:-اص د خرۀ اواز، د خرۀ غږ

**د خرۀ ذېل**:-اص (۱)د خرۀ ضد (۲) بې وقوفي

**د خره سر**:-اص کم عقل، بې وقوف

**د خرۀ ضد**:-اص و –د خرۀ ذېل

**د خرۀ لکۍ په لوېشتو کول**: –اص عبث کا کول، بې فائدې کار ته لاس اچول

**د خرۀ لکۍ ټېنګول**: –اص(۱)په خپل ضد ودرېدل (۲)فضول خبرې کول

**د خرۀ ليد**:-اص بې کاره او فضول څيز

**د خرۀ مرګ ځنې جوړول**:-اص لږ کار زياتول

**د خرۀ نه پلار جوړول**:-اص د چا نه خپل مطلب ويستل ، متل:خر پلار کړه کال پرې تېر کړه

**ددوۀ خرو دانه نۀ وېشل**:-اص کم عقل کېدل، په څۀ نۀ پوهېدل

**لکه د خر په جر مستېدل**:-اص(۱)هسې مستي کول (۲) د چا په لمسه د ځان نه بد معاش جوړول

**خر**:- (خ+ر) (پ اس صو مذ )د مرۍ اواز

**خر کول**:اص په خوب کښې د خرېدلو اواز ويستل، خر وهل

**خروهل**:-اص و –خر خر کول

**خراب**:- (خَ+را+ب) (فا ص مذ (مؤ وا: خرابه : خرابې) (۱)خراب، ناقص (۲) تباه، برباد

زما زړۀ لکه کشتۍ په درياب پروت ؤ

طوفان راغے دا کشتۍ ئې کړه خـــرابه (علي خان)

(۳)بې کار، ضائع، (٤) بد عمله، بد

**خرابات**:- (خَ+را+با+ت) (فا اس مذ )(۱)شراب خانه

که نور په صهبامست دي زه خوشحال په خرابات کښې

مستي ئې په ديدن کړم که دا عيب دے هم وي دے

(۲)بد عملي، فحاشي

**خراباتي**:- (خَ+را+با+تي) (فا اس مذ )(۱)شرابي (۲) بد عمله، وران کارے

**خراب تراب**:-(خَراب+تُ+را+ب) (پ ص مذ (مؤ وا: خرابه ترابه ج: خرابې ترابې) بد حاله، سر وهلے بر وهلے، په بد حال، په بلا ککړ

نۀ لکه ګدا خراب تراب د شاه په غم شوم

نـــۀ لکـــه مجنون هجر وژلے د ليلا يم (حميد)

**خرابتــوب**:- (خ+را+ب+تــو+ب) (پ اس مــذ ) خراپتيــا ، خرابــوالے، خرابـــي، خراپتوب، خراپتيا، خراپي، خراپوالے

**خرابتيا**:- (خراب+ت+يا ) (پ اس مؤ ) و - خرابتوب

**خرابوالے**:- (خراب+وا+لے ) (پ اس مؤ ) و - خرابتوب

**خرابول**:- (خَ+را+ب+و+ل ) (پ مص مت ) خراپول، ورانول، تباه کول، بربادول، ضائع کول، بې کاره کول

**خرابونه**:- (خَ+را+ب+و+نه ) (پ حمص )خراپونه، ورانونه، تباه کونه، بربادونه، ضائع کونه، بې کاره کونه، خراپونګ

**خرابوونکـــے**:- (خَ+را+ب+وُو+کـــے ) (پ فـــا ع مـــذ وا ج: خرابـــوونکي (مـــؤ: خرابـــوونکې) خراپـــوونکے، ورانـــوونکے، تبـــاه کوونکے، بربـــادوونکے، ضائع کوونکے، بې کاره کوونکے

**خرابي**:-(خ+را+بي ) (پ اس مؤ ) و - خرابتوب

**خرابېـــدل**:(خَ+را+بـــې+د+ل ) (پ مـــص لا)خراپېـــدل، ورانېـــدل، تبـــاه کېـــدل، بربادېدل، ضائع کېدل، بې کاره کېدل

**خرابېدنـــه**:-(خَ+را+بې+د+نـــه ) (پ حمـــص )خرابېـــدۀ، خراپېـــدۀ، خراپېدنـــه، ورانېدنه، تباه کېدنه، بربادېدنه، ضائع کېدنه، بې کاره کېدنه

**خرابېـــدُونکے**:(خَ+را+بـــې+دُو+ن+کے ) (پ مـــف مـــذ وا ج: خرابېـــدُونکي (مـــؤ: خرابېـــدُونکې)خراپېـــدُونکے، ورانېـــدُونکے، تبـــاه کېـــدُونکے، بربادېدُونکے، ضائع کېدُونکے، بې کاره کېدُونکے

**خرابېدۀ**:-(خ+را+پ ) (پ اس مذ وا ج: خراپُونه ) و - خَرابېدنه

**خراپ**:-(خ+را+پ ) (پ اس مذ وا ج: خراپُونه )خاپ، نخښه، چاپ پرهر، زخم

**خراپ**:-(خ+را+پ ) (پ فا: خراب ص مذ (مؤ وا: خراپه ج: خراپې ) و –خراب

**خراپ توپ**:(خراپ+تو+پ ) (پ اس مذ )خرابي، خراپتيا، خراپوالے

**خراپ تيا**:(خراپ+ت+يا ) (پ اس مؤ ) و –خراپ توب

**خراپوالے**:(خراپ +وا+لے ) (پ اس مذ ) و - خراپ توب

**خراپول**:-(خ+را+پ+و+ل ) (پ مص مت ) و - خرابول

**خراپونګ**:-(خ+را+پ+وَ+ن+ګ ) (اَف:پ (قاموس) حمص ) و - خرابونه

**خراپونه**: (خ+را+پ+وو+نه ) (پ حمص ) و - خرابونه

**خراپوونکـــے**:- (خ+را+پ+وُو+ن+کـــے ) (پ فـــا ع مـــذ وا ج: خراپـــوونکي (مـــؤ: خراپوونکې ) و - خرابوونکے

**خراپي**:-(خ+را+پي ) (پ اس مؤ ) و - خرابي

**خراپېدل**:-(خ+را+پې +د+ل ) (پ مص لا ) و - خرابېدل

**خراپېدنګ**:-(خ+را+بې+دَ+ن+ګ ) (اَف:پ (قاموس) حمص ) و –خراپېدنه

**خراپېدنه**:-(خ+را+پې+د+نه ) (پ حمص ) خراپېدنه

**خراپېـــدُونکے**:- (خ+را+بـــې+دُو+ن+کے ) (پ مـــف مـــذ وا ج: خرابېـــدُونکي مـــو: خراپېدُونکې ) و - خرابېدُونکے

**خراپېدۀ**:(خ+را+بې+دۀ ) (پ حمص ) و - خراپېدنه

**خراتګه**:(خ+را+ت+ګـه ) (اَف:پ (قـاموس) اس مـؤ وا ج: خراتګـې ) ځانګـه، خرانګه

**خراته**:- (خ+را+ته) (پ اس مؤ وا ج: خراتې) (۱)سخت اواز (۲) د ځناور اواز، د خر اواز

**ـــ کول**:-اص د ځناور خر خر کول

**خراج**:- (خَ+را+ج ) (ع اس مذ وا ج: خراجونه ) کلنګ، ماليه ، محصول، باج

ډوبوي پـــه خپلـــه ځان حاکم د عقل

چې دعشق د ملک خراج ته لري شوي (حميد)

**ـــ اچول**:-اص خراج مقرره ول، په چا کلنګ کښېښول

قناعت له ډېره غمه سرے خلاص که

اچـــاوۀ پـــه خـــرابه نۀ شي خراج (حميد)

**خراج اخستل**:-اص کلنګ اخستل، باج وصلول، خراج حاصلول

**ـــ حاصلول**:-اص و –خراج اخستل

**ـــ مقرره ول**:-اص و –خراج اچول

**ـــ منل**:-اص په ځان قلنګ منل، اطاعت ته غاړه کښېښودل

**ــ ورکول:** -اص قلنګ ورکول، باج ورکول

**ــ خراد:** - (خَ+را+د) (فا اس مذ وا ج: خرادونه)څرخ، یوه آله چې اوسپنه یا لرګي پرې تراشلې یا جوړولې شي

**خرادي:** - (خَ+را+دِيي) (پ اس مذ وا ج: خرادیان) په خراد کار کوونکی

**خراړکه:** - (خ+را+ړ+که) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ وا ج: خراړکې) یوه خړ رنګې مرغۍ چې په هوا کښې عجیبه عجیبه اوازونه وباسي

**خراړه:** - (خ+را+ړه) (پ اس مؤ وا ج: خراړې)خړکه، خړه بګه، یوه خړ رنګې مرغۍ

مشقت د علـــي خـــان څـــکه عبث شو

چې د باز دام ئې و خراړې وته کښېښنو

**خرازے:** - (خَ+را+زَے) (پ ب،خ اس مذ وا ج: خرازي)یو ازغن بوټی چې د ځانګو نه ئې د بېوزې لاستي جوړېږي، کنجغرے.

**خراس:** - (خ+را+س) (اَف:پ (قاموس) اس مذ وا ج: خراسُونه)د تېلو ګانړے

**چلیدل:** - (اَف) اص(۱)د تېلو ګانړے روانېدل(۲)دولتمند کېدل

**خُراسان:** -خُ+را+سا+ن) (پ اس معرفه مذ)په افغانستان کښې یوه علاقه کــه په سپین رخسار خوري که توري زلفې

روم به زنګ شي هند به ملک د خراسان که    (علي خان)

**خُراساني:** - (خُ+را+سا+ني) (پ ص)د خراسان سره تعلق لورنکے خراسانے

**خراسانے:** - (خُ+را+سا+نَے) (پ اس ص مذ وا ج: خراسانیان (مؤ: خراسانۍ) (۱)د خراسان اوسېدونکے (۲)د خراسان سره تعلق لرُونکے

**خراش:** - (خَ+را+ش) (فا اس مذ وا ج: خراشونه)ګرېدنه، خرپ، خاپ، نخښه، زخم

**خراشکے:** - (خ+را+ش+کے) (پ اس مذ وا ج: خراشکي) بلغم، ګروړې، کیخې، کړخه، د سینے خلط، توکانړي، ګروبلۍ، ګروبۍ، ګرولې

**خرافات:** - (خُ+را+فا+ت) (فا اس مذ)اوتې بوتې، افلتې، بکواس، بې هوده خبرې

**خِرام:** - (خِ+را+م) (فا اس مذ)د ناز و نخرې چال

په خرام خرام راځه چې بوي ئې واخلم

دواړه زلفې پـــــه عـــنبرو معـــنبر    (خوشحال بابا)

**خرامان:** - (خِ+را+ما+ن) (فا ص مذ مؤ وا: خرامانه ج: خرامانې)په ناز وادا ګرځېدونکے، پـه مکیـز مکیـز قـدم اخسـتونکے، رو رو پـه قـلاره تلونکے، په نخرو ګرځېدونکے

خو لوئیدم به د هجران تر ګړنګونو

د وسن د مینې یُون کا خرامان چپ    (بېدل)

**خُرانټ:** - (خُ+را+ن+ټ) (ه ص مذ)(۱)بوډا، زوړ، (۲) تجربه کار، ګرګ

**خرانده:** - (خ+را+ن+ده) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ وا ج: خراندې)د مزکې تراشنه

**ــ کول:** - (اف) اص مزکه تراشل

**ــ کېدل:** - (اف) اص مزکه تراشېدل

**خرانګه:** - (خ+را+ن+ګه) (پ اس مؤ وا ج: خرانګې) د ونې وړه څانګه، ډکے

**په خرانګې کول:** -اص ماشوم په ډوډۍ سورول

**خرانګې وارنګې:** - (خ+را+ن+ګې+و+را+ن+ګې) (پ ص)خرانګې ورانګې شاؤلې واؤلې، برابرا، ویړ واز

**ــ پرېوتل:** -اص خرانګې ورانګې، پرېوتل، شاؤلې واؤلې، غورځېدل، ویړ واز رانسکوربدل، برابرا پرېوتل

**خربشوے:** - (خَ+ر+بَ+شو+ے) (پ اس مذ (مؤ وا: خربشویه ج: خربشوي) (۱)خنزیر، سوډر، سُور

سړي هــوش چې د سړي له تنه پاځي

د سړیو په جامه کښې خربشوے شي    (رحمن بابا)

(۲)ذلیل او د پرېوتې خوي خاوند (۳)کینه، شیطان، علتې

**خربندے:** - (خ+ر+بَ+ن+دَ ے) (پ ب،خ اس مذ وا ج: خربندي)اَرتې، د مال یا څناورو د بندولو د پاره په لاړ کښې رکاوټ جوړول، لاړ بندے

**خربني:** - (خ+ر+ب+ني) (پ ص) خرکاري

**ــ کول:** -اص خرکاري کول

**خربنے:** - (خَ+ر+بَ+نے) (پ اس ص مذ وا ج: خربني) خرکار، خربه، هغه څوک چې خرهٔ ساتي

**خربوټے:** - (خ+ر+بُو+ټے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ وا ج: خربوټي) یو قاسم بُوټے چې په شګه کښې کېږي

**خربوټے:** - (خَ+ر+بُو+ټَے) (پ)شن) اس مذ وا ج: خربُوټي)بروزه، یو قسم وابنهٔ

**خربُوجل:** - (خَ+ر+بُو+ج+ل) (اَف:پ (قاموس) ص)په لتو وهلے، ټکولے، بې عزته کړے

**ــ کول:** - (اَف) اص په لتو وهل ټکول او بې عزته کول

**خربُوزه:** - (خَ+ر+بُو+زَه) (پ اس مؤ وا ج: خربوزې)یوه غنده شان خوږه مېوه، خټکے

**خَربون:** - (خَ+ر+بُو+ن) (پ اس ص مذ وا ج: خربانهٔ (مؤ وا: خربُونه ج: خربُونې) خربه، د خرو څروونکے

**خَربون توب:** -(خربُون+تو+ب) (پ اس مذ) خربون تیا، خربه والے، د خرو څرونه)

**خَربون تیا:** -(خربُون+ت+یا) (پ اس مؤ) و –خربُون توب

**خربه:** -(خَ+ر+بَه) (پ اس ص مذ وا ج: خربانهٔ (مؤ خربنه)و –خَربني

**ــ کول:** - اص په چا خرهٔ څرول

**ــ کېدل:** -اص د خرهٔ څرولو کار شروع کول

**خربه توب:** -(خربه+تو+ب) (پ اس مذ) خربه والے، د خرو څرولو کار

**خربه والے:** -(خربه+وا+ لے) (پ اس مذ) و - خربه توب

**خرپ:** - (خ+ر+پ) (پ اس مذ) (۱)د څهٔ څیز د وهلو یا ماتولو اواز (۲)نخښه، چاپ، خاپ (۳)دبدبه، کبر، لوئي، متل:د ترپه ولوئیـد خو د خرپه ونهٔ لوئید (۴) ګذار

د غم ګورله لاړ بېدل دلبره ټوک ټوک

ستا د نزا د زرزو سترګو تېغ له خرپه

**خروپ:** -اص(۱)ټوک ټُوک، ټوټې ټوټې (۲)د خرپا اواز

**ــ کېدل:** -اص د ماتېدو اواز کېدل

**خرپا:** - (خ+ر+پا) (پ اس مؤ) د خرپ اواز د څهٔ څیز د ماتېدلو اواز

**خرپانـدے:** - (خَ+ر+پـا+ن+دے) (پ (ګـن) اس مـذ وا ج: خرپانـدي)بلـې پـش، خرپانډے، بلونګړے، ګوډه بلې، د ونې پشوګے

**خرپانډے:** - (خ+ر+پا+ن+ډے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ ج: خرپانډي) و –خر پاندے

**خرپټ:** - (خ+ر+پ+ټ) (اَف:پ (قاموس) اس مذ وا ج: خرپټونه) مېده کړے دوائي، پوډر

**په خرپټ وهل:** – (اَف) اص څهٔ څیز مېده کول

**خرپټه:** - (خَ+ر+پَ+ټه) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ وا ج: خرپټې)یو قسم خړ رنګې وابنهٔ چې په مزکه هوار پیدا کېږي، پاڼې ئې نرمې وي او کچه خوړلې شي، د پېچش د پاره ئې خلق په طور د دارو استعمالوي

**خَرپل:** - (خَ+ر+پَ+ل) (پ (خ) اس مذ) د مېوې یا داسې بل څیز روستو پاتې شوې حصّه، خلې خزلې، ګند بلا.

**خرپل:** (خ+ر+پ+ل) (پ مص مت) وهل ټکول، خرپول

**خرپلکي:** (خ+ر+پ+لَ+کي) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) د مرغانونو په خاوره کښې لوبې

**ـــ کول**:-(اَف) اِص د مرغانو په خاوره کښې لوبې کول

**خرپله**:- (خَ+ر+پَ+له) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ وا ج: خرپلې) زوړ تغر

**خرپلے**:- (خ+رپَ+لے) (پ مف مذ وا ج: خرپلي (مو: خرپلې) وهلے شوے، ټکولے شوے، خر پولے

**خرپند**:- (خ+رپ+ن+ف) (پ اِس معر مذ (مؤ وا: خرپنده ج: خرپندې) (۱) د څهٔ څيز د ماتېدو په وخت اواز (۲) سخت جنګ (۳) سخته بيماري (٤) سخت څيز

**خرپول**:- (خ+رَ+پو+ل) (پ مص مت) (۱) وهل ټکول (۲) د څهٔ سخت څيز د خوراک په ډول چيچل، کرپول

**خرپولے**:- (خ+رَ+پ+وَ+لے) (پ مف مذ وا ج: خرپولي) (۱) وهلے، ټکولے (۲) څهٔ څيز د خوارک په ډول چيچلے کرپولے

**خرپُونکے**:- (خ+رَ+پُو+ن+کے) (اَف:پ (قاموس) فاع مذ وا ج: خرپُونکي (مؤ: خرپُونکې) وهُونکے، ټکوونُکے، خرپوونُکے

**خرپونګ**:- (خ+رَ+پ+وَ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خرپونه

**خرپونه**:- (خ+رَ+پ+و+نه) (پ حمص) (۱) خرپونګ، وهنه، ټکونه (۲) د سخت څيز د خوراک په ډول چيچنه، کرپونه

**خرپوونکے**:- (خ+رَ+پ+وُو+ن+کے) (پ فاع مذ وا ج: کرپوونُکي (مؤ: خرپوونکې) (۱) وهونکے، ټکوونُکے (۲) څهٔ سخت څيز د خوراک په ډول چيچونُکے، کرپوونُکے

**خرپهار**:- (خ+ر+پ+ها+ر) (پ اِس معر مذ) خرپے، په يو مخ د خرپولو اواز په هغه لوري چې کېږي پنځم کاَل دے

هـــره ورځ د سپينو تـــورو خـــرپهار (خوشحال بابا)

**خرپه خر ګردانه**:- (خَ+ر+پَه+خَ+ر+ګَ+ر+دا+نه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) (۱) د ماشومانو يوه لوبه چې دوه ټولي په کښې وي او په يو بل سوربږي (۲) بې طريقې او بې بندوبسته کار

**خرپے**:- (خ+ر+پَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱) د زنانوؤ يو ملّي اتڼ (۲) خرپهار

**خرپياڅهٔ**:- (خَ+ر+پ+يا+ت+سه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ ج: خرپياڅي) يو بوټے چې ګلونه ئې سپين وي او ازغي ئې نرم وي

**خرپېدل**:- (خ+رپې+د+ل) (پ مص لا) (۱) وهلے ټکولے کېدل (۲) په خولهٔ کښې چيچلے کېدل (۳) د خرپ خرپ اواز کېدل

**خرپېدلے**:- (خ+ر+پې+د+لے) (پ مف مذ وا: خرپېدلي (مؤ: خرپېدلې) (۱) وهلے ټکولے (۲) په خولهٔ کښې چيچلے، کرپولے

**خرپېدنګ**:- (خ+رپې+دَ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خرپېدنه

**خرپېدنه**:- (خ+ر+پې+د+نه) (حمص) (۱) خرپېدهٔ، خرپېدنګ، وهلے کېدنه، ټکولے کېدنه (۲) په خولهٔ کښې چيچلے کيدنه (۳) د خرپ خرپ اواز کېدنه

**خرپېدونکے**:-(خ+ر+پې+دُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خرپېدونکي (مؤ خرپېدونکې) (۱) وهلے کېدونُکے، ټکولے کېدونُکے (۲) په خولهٔ کښې چيچلے کېدونُکے (۳) د خرپ خرپ اواز کېدونکے

**خرپېدهٔ**:- (خ+ر+پې+ده) (پ حمص) و - خرپېدنه

**خرپين**:- (خَ+ر+پِي+ن) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱) يو قسم کروت (۲) د څناور نه پاتې خوراک

**خرت**:- (خ+ر+ت) (پ اِس مذ) (۱) کرکه، نفرت (۲) هغه اواز چې د پوزې نه راوُزي (۳) منډه، دَو دړره

**ـــ وئيل**:- (ب،خ) اِص په دَو کېدل، منډه کول، پښې ويستل، په خټ خټ خندل، په زوره زوره خندل، زړهٔ د اخلاصه خندا کول

**خرتانګ**:- (خَ+ر+تا+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) د تانګ د تړلو تسمه

**خرتموس**:- (خَ+ر+ت+مُو+س) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) سخته ګرمي، د ګرمۍ څپه

**خرتوب**:- (خ+ر+تو+ب) (پ اِس مذ) کم عقلي، بې عقلي، ناپوهي، بې وقوفي، خرتوبي، ضد

**ـــ کول**:-اِص کم عقلي کول، بې وقوفي کول، خرتوبي کول، ضد کول

**خرتوبي**:- (خَ+ر+تو+بِي) (پ اِس مؤ) و - خرتوب

**ـــ کول**:-اِص و - خرتوب

**خرتوس**:- (خَ+ر+تُو+س) (اَف:پ قاموس) اِس مذ) يو بوټے چې د سوځولو په کار راځي

**خرتيزه**:- (خَ+ر+تِي) (پ اِس مؤ وا ج: خرتيزې) ټوپ، ترپ، غورزنګ

**خر تيزې وهل**:-اِص ټوپونه وهل، ترپونه وهل، غورزنګونه وهل، بد تميزي کول

خوش خـــوي هر ګوره ښهٔ ده نهٔ دا هومره
چې په باغ کښې دې خرتيزې وهي خرُونه (خوشحال بابا)

**خرټ**:- (خ+ر+ټ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) د تورو تېلو خيرے چې په وېخ کښې جمع وي

**خرټ**:- (خ+رَ+ټ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ (مؤ وا: خرټه ج: خرټې) (۱) ثورب، غټ، (۲) سکاڼ (۳) سخت

**خرټ توب**:- (خ+رَ+ټ+تو+ب) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱) خرټتيا خرټوالے، ثوربوالے، ثرلښت (د خوي سختي)

**خرټيا**:- (خ+رَ+ټ+ت+يا) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) و - خرټ توب

**خرټسکے**:- (خَ+ر+ټ+س+کے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خرټسکي) يو بوټے چې وېخ ئې غنډ او خوند ئې تريخ وي

**خرټوالے**:- (خ+رَ+ټ+وا+لے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) و - خرټ توب

**خرټول**:- (خ+رَ+ټ+و+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت) (۱) ثربول، غټول (۲) صفا کول، پاکول (۳) خبره ورانول

**خرټونه**:- (خ+رَ+ټ+و+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) (۱) ثربونه، غټونه (۲) صفا کونه، پاکونه (۳) خبره ورانونه

**خرټوونکے**:- (خ+رَ+ټ+وُو+ن+کے) (اَف:پ (قاموس) فاع مذ وا ج: خرټوونُکي (مؤ: خرټوونکې) (۱) ثربوونکے، غټوونُکے (۲) صفا کوونُکے، پاکوونُکے (۳) خبره ورانوونکے

**خرټه**:- (خ+رَ+ټه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ وا ج: خرټې) غټ پګ، لويه پګړۍ، منډوس پنډوس

**خرټه**:- (خ+رَ+ټه) (اَف:پ (قاموس) ص) چلولي، ټک، ريا کار، دغاباز، دوه ژبے، دوه ژنګے، دوکه باز

**خرټے**:- (خ+ر+ټے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خرټي) (۱) غُنډ، تاؤ راتاؤ (۲) د ونې وېخ (۳) خلے، تيلے، تيلنکے (٤) غټ لرګے

**خرټيټ**:- (خَ+ر+ټِي+ټ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) زکام، ساړهٔ وهل، پوزه بهېدل

**خرټېدل**:- (خ+رَ+ټې+د+ل) (اَف:پ (قاموس) مص لا) (۱) ثربېدل، غټېدل (۲) صفا کېدل، پاکېدل (۳) خبره ورانېدل

**خرټېدنه**:- (خ+رَ+ټې+د+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) (۱) ثربېدنه، غټېدنه (۲) صفا کېدنه، پاکېدنه (۳) خبره ورانيدنه

**خرټېدونکے**:- (خ+ر+ټې+دُو+ن+کے) (اَف:پ (قاموس) مف مذ وا ج: خرټېدونکي (مؤ: خرټېدونکې) (۱) پربېدونُکے، غټېدونُکے (۲) صفا کېدونُکے، پاکېدونُکے

**خرجاړے**:- (خَ+ر+جا+ړے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خرجاړي) هغه کاڼي چې د غرۀ په لمن کښې پراتۀ وي

**خرجګ**:- (خَ+ر+ج+ګ) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) د ماشومانو یوه لوبه چې په کښې یو ماشوم خپل لرګے لرې وُغورزوي او نور ماشومان د هغۀ مقرر ځائے نه په خپلو لرګو هغه لرګے ولې، ګلي ډندا، اډي کوتک.

**خرجګ کول**:-(اف) اص د خرجګ لوبه کول، ګلي ډنډا کول

**خرجګجګلے**:- (خ+ر+ج+ګ+ج+ګ+ لَے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) د ماشومانو یوه لوبه چې یو په کښې تیښتې شي بل د هغۀ په اوږه سور شي او د دغه شور ماشوم په اوږه به او دغسې چې کُوم هلک سوریدو نه روستو پاتې شي نو بیا د دۀ وار شي چې د نور ماشومان ئې په اوږه سوارۀ شي

**خرجلک**:- (خَ+ر+ج+لَ+ک) (پ (سو) ص) خرګلک، بې ترتیبه ګنه، خرجوبله

**خرجوبله**:- (خَ+ر+جو+ب+له) (اَف:پ (قاموس اس مؤ) و - خرجلک

**خرجوبله**:- (خَ+ر+جو+ب+له) (پ (خل) اس مؤ) یوه لوبه چې غنډسکے یا غنډ څیز د یو بل نه تښتوي

**خُرجي**:- (خُ+ر+جي) (پ اس مؤ) خورجي، خورجین، خرجیکه، خُرجین

**خرجیکه**:- (خ+ر+جي +که) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ وا ج: خرجیکې) خورجین، خورجي، هغه کڅوړه چې دې اَس یا ټټو د پاسه سامان په کښې اچولے شي، د خرۀ بوره

**خُرجین**:- (خُ+ر+جي+ن) (پ اس مذ وا ج: خرجینونه) و - خُرجي

**خرچ**:- (خَ+ر+چ) (پ اس مذ وا ج: خرچونه) خرڅ، لګښت

**ـــ کول**:-اص لګول، خرڅ کول

**ـــ کېدل**:- اص خرڅ کېدل، لګېدل

**خرچ**:- (خ+رَ+چ) (پ اس صو مذ) (۱)د لرګي د ماتېدو اواز (۲)د تُوري وهلو اواز (۳)د غاښونو د یو بل سره د مښلو اواز

**خرچ برچ**:- (خَ+ر+چ+بَ+ر+ج) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) خرپ ګرپ، د بېړو یا شیشتو یوه لوبه

**خرچکه**:- (خ+رَ+چ+که) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) د غنمو اوربشو فصل ته لږ نقصان رسېدل

**خرچول**:- (خ+ر+چ+و+ل) (پ مص مت) (۱)غاښونه د یو بل سره مښل چې د خرچ خرچ اواز ترې راوُځي، غاښونه چیچل (۲)په غاښونو کښې چیچل (۳)قینچي نه بغېر د څۀ څیز پرې کولو اواز ویستل

**خرچولے**:- (خ+ر+چ+و+لے) (پ مف مذ وا ج: خرچولي ٌمؤ: خرچولې)(۱)په غاښونو کښې څۀ څیز چیچلے (۲)لرګي نه خرچ خرچ اواز ویستلے

**خرچـومے**:- (خَ+ر+چُـو+مَے) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ) خرمستي، غوړدانګے، خرتیزے، خرچیلکے

**ـــ کول**: (اَف) اص خرمستي کول، خرتیزي کول، د خرۀ لتې او ټوپونه وهل، کرچیلکے کول

**خرچونه**:- (خ+ر+چ+و+نه) (پ حمص) (۱)په غاښو کښې چیچنه (۲) غاښونه چیچنه (۳)د قینچي نه بغېر د څۀ څیز د پرې کولو اواز ویستنه

**خرچووُنکے**:- (خ+ر+چ+و"و+ن+کے) (پ فاع مذ وا ج: کرچووُنکي (مؤ خرچوونکې) (۱)غاښونه چیچُونکے (۲) څۀ څیز په غاښونو کښې چیچُونکے (۳)د قینچي نه بغېر د څیز پرې کولو اواز ویستونکے

**خرچه**:- (خَ+ر+چَه) (پ اس مؤ وا ج: خرچې) (۱)خرڅه، لګښت (۲)د تلو راتلو کرایه، (۳) د خوراک د لګښت پیسې (۴) هغه فالتو ټوټې چې درزیان ئې په لستونړو یا کالرو کښې لګوي

**ـــ پرې کول**:-اص(۱)خرڅه ورکول(۲)د تلو راتلو کرایه ورکول (۳)د خوراک د پاره پیسې ورکول

**خرچهار**:- (خ+ر+چ+ها+ر) (پ اس صو مذ) (۱)خرچې، په یو مخ د غاښونو د چیچلو اواز(۲)په غاښونو کښې د څۀ څیز د چیچلو اواز(۳)د څانګې د متولو پرله پسې اواز، په کټ کښې د اوړېدو رااوړېدو په وخت چې کُوم اواز خېژي

**خرچے**:- (خ+ر+چې) (پ اس ص مذ) و - خوچهار

**خرچے**:- (خَ+ر+چے) (پ اِس ص مذ وا ج: خرچي)خرڅي، خرڅ کووُنکے، لګووُنکے

**خرچېدل**:- (خ+ر+چې+د+ل) (پ مص لا)(۱)د غاښونو د خرچ خرچ اواز کېدل (۲)غاښونو کښې څۀ څیز چیچلے کېدل (۳)څانګه ماتېدل (۴) د کټ اواز

**خرچېدلے**:- ر(خ+ر+چې+دَ+لے) (پ مف مذ وا ج: خرچېدلي (مؤ: خرچېدلې) (۱)غاښونو کښې څۀ څیز چیچلے (۲)څانګې نه د ماتېدو اواز ویستلے

**خرچېدنه**:- (خ+ر+چي+د+نه) (پ حمص)(۱)د غاښونو د چیچلو اواز کېدنه (۲)په غاښونو کښې څۀ څیز چیچلے کېدنه(۳)څانګه ماتېدنه

**خرچېدوُنکے**:- (خ+ر+چي+دُو+ن+کې) (پ مف مذ وا ج: خرچېدوُنکي (مؤ خرچېدونکې)(۱)په غاښونو کښې چیچلے کېدوُنکے(۲)یو غاښ بل غاښ سره مښلے کېدوُنکے(۳)څانګه ماتېدوُنکے

**خرچیلکي**:- (خ+ر+چي+ل+کې) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) و – خَرچُومې

**ـــ کول**:- (اَف) اص و – خرچومې کول

**خرڅ**:- (خَ+ر+څ+س) (پ اس مذ وا ج: خرڅوُنه) و – خرچ کول

چې خرڅ کـــولے شي هغه به خپل اشنایادوي

چې مال ئې ختم شي احمق ئې پشې شا یادوي (شمس الزمان)

**ـــ کېدل**:-اس و – خرچ کېدل

**خرڅ**:- (خ+ر+څ+س) (پ اس مؤ مذ) و - خرچ

**خرڅاوُو**:- (خ+ر+څ+سا+وُو) (اَف:پ (قـاموس) اِس ص) خرڅـي، زیـات خرڅ کووُنکے، فضول خرچ

**خرڅښت**:- (خَ+ر+ت+ش+ش+ت+یا+ت+س+خ+ث) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) خرڅه، لګښت

**ـــ کول**:- (اَف) اص خرڅ کول، پیسې لګول

**خرڅلاؤ**:- (خ+ر+څ+س+لا+و) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) خرڅون، خرڅلون

**خرڅلون**:- (خَ+ر+ت+س+لُو+ن) (پ اس مذ) و - خرڅلاؤ

**خرخوړے**:- (خَ+ر+ت+سو+ړے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خرخوړي) (۱)ورکوټے څادر، څادر ګوټے

لکه لـــونـد خرخوړے تاؤ کړم نم ئې نۀ وي

بېلتانه هسې نچوړ کړم په خپل زور کښې (خوشحال بابا)

(۲)زره او عبث جامه

**ـــ باورل**:- (اَف) اص د سفر تیاري کول

**د اسمان خرخوړے**:- (اَف) اص د وریځې ټوټه،

**د خپل خرخوړي سره پښې غزول**:–اص (۱)د خپل څادار د لوے والي نه زیاتې پښې نۀ اوږدول

که سارۀ وي که غارمۀ که ژي او ووړے

تیره مه غزوه پښه تر خپل خرخوړي

(۲)فضول خرڅي کول، د خپل توان طاقت نه زیات خرڅ کول

**خرڅول**:- (خَ+ر+ت+س+و+ل) (پ مص مت) (۱)څهٔ څیز چا ته په بیعه ورکول (۲)خرڅ کول، لګول (۳)زیادول، د څهٔ کار بیا بیا، د احسان خېژلو په ډول یادول

**خرڅون**:- (خَ+ر+ت+سُو+ن) (پ اِس مذ) خرڅونه، په بیعه ورکونه

**خرڅونګ**:- (خَ+ر+ت+س+و+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خرڅونه

**خرڅونه**:- (خَ+ر+ت+س+و+نه) (پ حمص) خرڅونګ، په بیعه ورکونه، خرڅون

**خرڅووُنکې**:- (خَ+ر+ت+س+وُو+ن+کې) (پ فاع مذ وا ج: خرڅووُنکي (مؤ: خرڅوونکې)(۱)خرڅووُنې، په بیعه ورکووُنکې (۲)خرڅ کووُنکې، خرڅي

**خرڅُونې**:- (خَ+ر+ت+سُو+نې) (پ ص مذ وا ج: خرڅوني (مؤ: خرڅونې)(۱)د خرڅ قابل (۲)مرئې، غلام

**خرڅووُنې**:- (خَ+ر+ت+س+وُو+نې) (پ فاع مذ وا ج: خرڅووُني مؤ: خرڅوونې) و - خرڅوونکې

**خرڅې**:- (خَ+ر+ت+سِي) (پ اِس مؤ) (۱)د لارې د سفر خرڅه (۲)د عسکر مخصوص حاصل(۳)کونډې یا شړلې شوې زنانه ته د خرڅ خوارک د پاره چې کُوم مقرر رقم ورکولې شي(٤)خرڅ کووُنکې

— **اخستل**:-اِص(۱)د لارې د سفر خرڅ اخستل (۲)د عسکر مخصوص حاصل تر لاسه کول(۳)د کونډې یا شړلې شوې ښځې د خپل خرڅ خوراک د پاره رقم اخستل

— **ورکول**:-اِص(۱)سفر دلارې خرڅ ورکول (۲)د عسکر مخصوص حاصل ورکول (۳)کونډې یا شړې شوې ښځې ته د خرڅ خوارک د پاره رقم ورکول

**خرڅېدل**:- (خَ+ر+ت+سې+د+ل) (پ مص لا)(۱)په بیعه ورکولې کېدل (۲)خرڅ کېدل، لګېدل

**خرڅېدنګ**:- (خَ+ر+ت+سې+د+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و – خرڅېدنه

**خرڅېدنه**:-(خَ+ر+ت+سې+د+نه) (پ حمص)(۱)خرڅېدنګ، خرڅېدهٔ، په بیعه ورکولې کېدنه (۲)خرڅ کېدنه، لګېدنه

**خرڅېدوُنکې**:- (خَ+ر+ت+سې+دُو+ن+کې) (پ مض مذ وا ج: کرڅېدوُنکي (مؤ: خرڅېدوُنکې)(۱)په بیعه ورکېدوُنکې(۲)خرڅ کېدوُنکې، لګېدوُنکې

**خرڅېدهٔ**:- (خَ+ر+ت+سې+ده) (پ حمص) و - خرڅېدنه

**خرخاري**:- (خَ+ر+خا+رِي) (پ ص) خروتوب، کم عقلي، ناپوهي، بې عقلي

**خرخچ**:- (خَ+ر+خ+چ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) اندرپایه، پارڅنګ، پوړۍ

**خرخرچ**:- (خَ+ر+خ+رَ+ج) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) د ماشومانو د بېلېدو یا شپشتو یوه لوبه چې ټولې بېلېږي یو بل ته مخامخ کېږدي او هغه وار په وار په بېلېږي ولي

**خرخره**:- (خَ+رخ+رَه) (پ اِس مؤ) د اوسپنې نه جوړه تیرهٔ ږمنځ شان چې د اَس نه دُوړې پرې لرې کولې شي

— **کول**:-اِص (۱)د اوسپنې په ږمنځ د اَس نه دُوړه ویستل (۲)رضا کول، دلاسه کول

— **کېدل**:-اِص(۱)د اوسپنې په ږمنځ د اَس نه دُوړه ویستلې کېدل(۲)رضا کېدل، دلاسه کېدل

**خرخشې**:- (خَ+ر+خ+شِې) (پ اِس مذ) مرۍ صفا کونه

— **کول**:-اِص مرۍ صفا کول

**خرخشې**:- (خَ+ر+خَ+شې) (پ اِس ج مؤ)(۱)خرخښې، فتنې

خرخوش فتنو د مرګ وته نزدې کړم
چې یو دم راسره نهٔ ئې بې جنجاله (خوشحال بابا)

(۲)د زړهٔ وسواس

— **کول**:-اِص(۱)وسواس کول (۲) د ماشوم ضد کول

**خرخښه**:- (خَ+ر+خ+شَه+یا خَه) (پ اِس مؤ وا ج: خرخښې)(۱)فتنه، خرخشه

په غربت د سادګۍ ساده رویو
کښېستم د خال او خط په خرخښو (حمید)

(۲)د زړهٔ وسواس (۳) د ماشوم ضد یا ذېل

— **کول**:-اِص(۱)وسواس کول (۲)د ماشوم ضد کول

**خرخلال**:- (خَ+رخ+لا+ل) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) د ماشومانو یوه لوبه

**خرخوړۍ**:- (خَ+ر+خو+ړئ) (پ (خ) اِس مؤ) (۱)ول، غورندۍ، ګرداب

د لویو لویو غرونو په خورې ورې جولۍ کښې
د دنګو دنګو څوکو یو ژوره کرکوړۍ کښې

(۲)کنده، ډوغله

**خرخوړې**:- (خَ+ر+خو+ړې) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خرخوړي (۱)خرخوړۍ، ول، ګرداب، غورندۍ (۲) کنده، ډوغله

**خرخوړې**:- (خَ+ر+خو+ړې) (پ (ب،خ) اِس مذ) یو ترسکون شان شینکې چې د سبزۍ په دول پخولې شي، او خلق ئې کچه هم خوري

**خرخول**:- (خ+ر+خ+و+ل) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خرخولُونه) یوه لویه قینچې یا بیاتې چې د ګډو وړۍ پرې کټېلې شي

**خُردبین**:- (خُ+ر+د+بِي+ن) (فا اِس مذ وا ج: خرد بینونه) هغه آله چې ورکوټې څیز غټ ښکاره کوي

**خردجال**:- (خَر+دَ+جا+ل) (فا اس معرفه مذ وا)(د دجال د سورلۍ خر (۲))کم عقل، بېوقوف، خر دماغ

**خردګ**:- (خَ+ر+د+ګ) (پ (ګن) اِس ص مذ (مؤ خردګه) بې عقله او بې ډبه سړې، خردګ، خردنګ، بې تمیزه

**خَردماغ**:- (خَ+ر+دِې+ما+غ) (پ اِس ص مذ (مؤ وا: خردماغه ج: خردماغې) کم عقل، بې وقوف

**خردنګ**:- (خَ+ر+د+ن+ګ) (پ ص مذ (مؤ وا: خردنګه، ج: خردنګې) و — خردګ

**خرډانګ**:- (خَ+ر+ډا+ن+ګ) (پ (سو) اِس مذ) لوې ډانګ، لویه ډنډه، هغه ډانګ یا کوتک چې مجرم پرې داسې سور کړي چې یوه پښه ئې یو اړخ ته او بله ئې بل اړخ ته وي او د کلي په کوڅو او بازارونو ئې ګرځوي او دغه شان ئې شرموي

**په خر ډانګ کول**: – اِص د سزا په ډول او د عبرت اخستو په غرض شرمول

**په خرډانګ کېدل**:-اِص یو خاص سزا ورکېدل

**خرډبه**:- (خَ+ر+ډَ+به) (اَف:پ (قاموس) ص) بې ډبه، بې تمیزه، کم عقل

— **کېدل**: -(اَف) اِص بې تمیزه کېدل، کم عقل کېدل

**خرډګ**:- (خَ+ر+ډ+ګ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ)(۱)خردنګ، خردګ (۲)یو بوټې چې پلنې پاڼې لري

**خرډګې**:- (خَ+ر+ډ+ګې) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)جاهل، بې تمیزه، کم عقل(۲)خرېړې، خُمبه، دُوړنګ، خرغېنې

**خرډنګ**:- (خَ+ر+ډ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) و - خردنګ

**خرډیګ**:- (خَ+ر+ډِي+ګ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خرډیګي) (۱)یو قسم بوټې(۲)د کوړکۍ هغه موږکې چې د چرچڼو د نیولو د پاره په کښې د

ډوډۍ یا د غوښې ټوټه ایښودلې شوې وي

**خـرړک**:- (خ+ر+ړ+ک) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ )خـرا‌ړه، خرګټه، خرا‌کـه، د خراړې او خرغې په شان یوه مرغۍ، خره مرغۍ، خراکه

**خَـرړے**:- (خَ+ر+ړ+ے) (پ (ګـن) ب،خ) اِس مـذ )پـه شـملو کښـې چـې تـازه پـې وُلُوشلې شي او بیا په کښې ډوډۍ نرمه کړے شي دې خوراک تـه خرړے وائي

**خَوز**:- (خ+ر+ز) (پ (ب،خ) اِس مـذ )یو تیرۀ شان اَزغے یا خچے، خرنډ، مُونډ کرکے

**ــ په خپته منډل**: -اص(۱)خچې په خپته منډل(۲)غلط کار کول(۳)ضد کول

**خرز**: (خ+ر+ز) (اَف:پ (قاموس) اِس مـذ )هغـه لرګـے چې پرې د اُوړو د کموالي زیاتوالي اندازه لګولے شي

**خـرزوره**:- (خَ+ر+زو+رَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مـؤ )یـوه شـین رنګـې ګیـاه چـې دوې پاڼې لري او په شي کښې د څناورو د خوراک د پاره استعمالېږي

**خر زېړے**: (خَ+ر+ذې+ړ+ے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ )د زېړې مرض

**خرس**:- (خَ+ر+س) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) د زیرې په شان یو خوشبویه بُوټے چې په بخرې اچولے شي

**خرسا**:- (خ+ر+سا) (اَف:پ (قاموس) اِس صو مؤ)خرسهار، د لرګي پـه یـو مـخ د ماتېدو اواز

**خرسـاب**:- (خَ+ر+سـا+ب) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ) د ماشـومانو د بېـدیو یـا شپشتو یو قسم لوبه

**خَرسپانده**:- (خَ+ر+س+پا+ن+ده) (اَف: پ (قاموس) اِس مـؤ وا ج: خرسـپاندې) یو قسم بُوټے چې سپین ګل، او نرۍ پاڼې لري

**خرسـک**:- (خَ+ر+سَ+ک) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ )د خوشـحالۍ ټوپونـه او ترپې، خرتیزي

هر ساعت راباندې عید استغنا دے
که په نور عالم ژړا زۀ په خـرسک یم (خوشحال بابا)

**ــ کول**: – (اَف) اص د خوشحالۍ ټوپونه وهل خرتېزي کول

**خرسکه**:- (خَ+ر+س+کـه) (پ (بنو) اِس مـؤ وا ج: خرسـکې) یـوه ورکـوټې خره مرغۍ، ابابیله

**خرسن**:- (خَ+ر+س+ن) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خرسنُونه) د براندې یـا د کور د لرګي غټه مضبوطه ستن

**خرسـند**:- (خ+ر+س+ن+د) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ )(۱)کروسـند، چغـزي، زرماتېدونُکے (۲)خالي، ډډ، تش، ګوګ

**خرسند توب**:- (خرسند+تو+ب) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ )خرسـند والے،چغـزي توب

**خرسنګ**:- (خَ+ر+س+ن+ګ) (فا اِس مذ وا ج: خرسنګونه) غټ کاڼے، غټه چمه

اے خوشحاله فهم وکړه
چې پرېوزې خرسنګونه

**خرسور**:- (خَ+رسو+ر) (اَف:پ (قـاموس) ص مـذ (مؤ وا: خرسوره ج: خرسـورې) (۱)هغه ښوک چې په خرۀ سور وي (۲)کم عقل پاګل (۳) شرمېدلے

**خرسـول**:- (خ+ر+س+و+ل) (اَف:پ (سـیند) مـص مـت )لـرګے ډېـر زیـات وهـل، لرګي ته زیات زورونه ورکول

**خرسُومبه**:- (خَ+ر+سُو+م+بَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) د شکو ځنګلي وابنۀ

**خرسهار**:- (خ+ر+سَ+ها+ر) (اَف:پ (سیند) اِس ص مذ )خوسا، خرسے

**خرسے**:(خ+ر+سَے) (اَف:پ سیند) اِس صو مذ )خرسا، خرسهار

**خرسېدل**:- (خ+ر+سې+د+ل) (اَف:پ (سیند) مـص لا) (۱)د بیمـار د ځنکـدن پـه وخت د سینې اواز (۲)د چیلم کش د ټوخي اواز

**خرش**:- (خ+ر+ش) (پ اِس مؤ مذ) د ساه اخستو په وخت د پوزې اواز

**خرشکه**:- (خ+ر+ش+که) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ )(۱)سختـه شوې ځوانکـه، پـه مخ د ځوانۍ دانه (۲)خوشکي، نازک اغذ

**خَرشــونډے**:- (خَ+ر+شُــو+ن+ډ+ے) (اَف:پ (قــاموس) اِس ص مــذ وا ج: خرشونډې) هغه سړے چې شونډې ئې ډېرې غټې وي، شُونډه ور

**خَرشونډے**:- (خَ+ر+شُو+ن+ډ+ے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ)د غوا وربوز

**خرشپدل**:- (خ+ر+شې+د+ل) (پ مص مت) پـه پـوزه سـاه راکښـل، پـه پـوزه اواز ایستل

**خرشېدلے**:- (خ+ر+شې+دَ+لے) (پ مف مذ وا ج: خرشېدلي (مؤ: خرشېدلې) په پوزه اواز راکښلے

**خرشېدنه**:- (خ+ر+شې+د+نه) (پ حمص) په پوزه اواز راکښنه

**خرشـپدُونکے**:- (خ+ر+شـې+دُو+ن+کـے) (پ فـاع مـذ وا ج: خرشـېدُونکي (مـؤ: خرشېدُونکې) په پوزه اواز راکښونُکے

**خَرشین**:- (خَ+ر+شي+ن) (پ (سو) اِس ص) بې پروا، بې بـاک، بې فکره، بې ډبه

**خرشـین**:- (خَ+ر+شـي+ن) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ وا ج: خرشـینه) د خـر او د اَس خشنۍ، یا سره یا لید

**خر غوږے**:- (خَ+ر+غ+وَ+ږ+ے یا ګے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ )یو قسم ځنګلي بوټے دے چې خرې پاڼې ئې وي او د دوائي په طور استعمالېږي

**خـر غولـه**- (خَ+ر+غو+لَـه) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـؤ وا ج: خرغـولې) یـو قسـم سبزي ده چې پاڼې ئې پخوي

**خرغینے**:- (خَ+ر+غي+ن+ړ+ے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) یو قسم خرېړے چې خوړے نۀ شي

**خرقـه**:- (خ+ر+قَـه) (ع اِس مـؤ وا ج: خرقـې) کنـد، ګُـدړۍ، پیوندونـه لګېـدلے خلقه، د فقیرانو او در ویشانو جامه

نۀ په دا دے چې زۀ شېخ مُلا درویش یم
پــه کتاب او پــه خرقه په او را د نشي (علي خان)

**خـرک**:- (خَ+ر+ک) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ )(۱)هغـه لـرګے چـې غـرک ورسره ځوړند وي او شوملې جوړوي(۲)هغه اوسپنه چې د مېنچې د تیر پـه سر لګیدلې وي (۳)هغه لرګے چې د رباب تارونه پرې سوارۀ وي (٤)یو قسم خر رنګے چینچے

**دچاد خېر که وهل**: – (اَف) اص د چا په کار کښې بې ځایه دخل ورکول، د بـل پـه کار کښې ګوتې وهل

**خرکار**:- (خَ+ر+کا+ر) (پ اِس مذ وا ج: خرکاران) هغـه ښوک چې د مزدورۍ د پاره ئې یو ښوخرۀ او مزدوران ساتلي وي

چې د خرو په ګټه کښېني جوارۍ ته
پــه ډنډې هغه خرکار سمول غواړي (قیوم مروت)

**خرکاري**:- (خَر+کا+ري) (پ اِس مؤ) د خرو د مذدورۍ کاروبار

**ــ کول**:-اص د خرو د مذدورۍ کاروبار کول

**خرکاوه**:- (خَ+ر+کـا+وَه) (پ اِس مـؤ )(۱)خرکـاؤ، پـه رومبي ځـل فصـل تـه اُوبـۀ ورکول (۲)(شن) ګوډ

**ــ ماتول**:-اص خرکاؤ مـاتول پـه پسـرلي کښـې د غنمو فصـل د کرلـو نـه پس پـه اول ځل اوبۀ کول

**ــ ماتېدل**:-اص په پسرلي کښې د غنمو وغېره فصـل د کرلـو نـه پس پـه اول ځـل اوبۀ کېدل، خرکاؤ ماتېدل

**په خرکاؤ کښې کېدل**:- (اَف) اص د فصل ترے کېدل د فصل اوبۀ غوښتل

**خرکوتره**:- (خ+ر+کَو+تَ+رَه) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـؤ وا ج: خرکوترې) ډاګي

کونتره، یو قسم ځنګلي کونتره چې په اساني سره ښکار کېږي

**خرکه**:- (خ+ر+که) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) هغه ازغنه مزکه چې سادین شوې نهٔ وي

**خرکۍ**:- (خ+ر+کۍ) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) یو قسم چینجے

**خرکے**:- (خ+ر+کَے) (پ اِس صو مذ) د خر خر اواز، د اورکزو په شېخانو کښې د یو کلي نامه ده.

**خرکۍ**:- (خَ+ر+ کۍ) (پ (ب،خ) اِس مؤ) یو قسم حشره چې خړ رنګ ئې وي د یو ځاے نه بل ځاے ته ټوپ وهي او خلق ئې تنزرو ته د خوراک په ډول ورکوي

**خرکۍ**:- (خَ+ر+ک+ۍ) (پ (ب،خ) اِس مؤ) پېغور

**ـــ ورکول**:-اِص پېغور ورکول

**خرکے**:- (خَ+ر+ کے) (پ اِس صو) د غاړې د خر خر اواز

**ـــ کول**:-اِص د خر خر اواز کول

**خرکېدل**:- (خ+ر+کې+د+ل) (پ مص لا) په خوب کښې په زور زور باد په خولې ایستل، خراټې وهل

**خرکېدل**:- (خ+ر+کې+د+ل) (اَف:پ (قاموس) مص لا) (۱)د بُوټو وښو زور کول وابښهٔ وده کول (۲)دانه پرسېدل او د وینې زوې نه ډکېدل (۳)د هلک جینۍ د بلوغت په وخت کښې ځربېدل او غټېدل

**خرکېدلے**:- (خ+ر+کې+دَ+لے) (اَف:پ (قاموس) مف مذ وا ج: خرکېدلي (مؤ: خرکېدلې) (۱)ښهٔ وده کړے بُوټے (۲)دانه پړسېدلے او د وینو زوو نه ډکه شوې (۳)بالغ هلک یا جینۍ پړسېدلے

**خرکېدنګ**:- (خ+ر+کې+د+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و –خرکېدنه

**خرکېدنه**:- (خ+ر+کې +د+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) (۱)خرکېدنګ د بوټو وښو ښهٔ وده کېدنه(۲)دانه پړسېدنه او د وینو زوو نه ډکېدنه (۳)هلک یا جینۍ د بلوغت په وخت غټېدنه

**خرکېدُونکے**:- (خ+ر+کې+دُو+ن+کے) (اَف:پ (قاموس) فاع مذ وا ج: خرکېدُونکي (مؤ: خرکېدونکې)(۱)بُوټے زور کوونکے ښهٔ وده کوونکے (۲)دانه د وینو زوو نه ډکېدونکے (۳)هلک یا جینۍ د بلوغت په وخت غټېدونکے

**خَرګټه**:- (خَ+ر+ګ+ټه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ وا ج: خرګټې) یو قسم مارغهٔ

**خرګلک**:- (خَ+ر+ګ+ل+ک) (پ اِس مذ وا) و - خرجلک

**خرګنډے**:- (خَ+ر+ګ+ن+ډَ+ے) (پ (ظفر) اِس مذ وا ج: خرګنډي)کُوچے، کوځے

**خرګوټے**:- (خَر+ګو+ټَے) (پ اِس تصغیر مز وا ج: خرګوټي) ورکوټے خر

**خرګۍ**:- (خَ+ر+ګ+ۍ) (پ اِس مؤ) (۱)د بشکال ګونګټه (۲)یو قسم چینجے چې په وښو کښې پیدا کېږي (۳)ورکوټې خره (٤) کم عقله جینۍ

**خرګے**:- (خ+ر+ګِے) (پ اِس تصغیر مذ وا ج: خرګي (مؤ: خرګۍ) ورکوټے خر، خرګوټے

هېڅ څـهٔ نـهٔ غواړي له خدایه بې خرګي او تبرګي نه
ځکه هر خټک نواب دے ځکه هر خټک سالار دے (پرېشان خټک)

**خرل**:- (خ+ر+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت)مزکه په لاسو یا په پښو کنستل یا ګرول

**پښې خرل**:- (اَف) اِص خپلې پښې مضبوطول، په څهٔ کار کښې ځان ټینګول

**خرلنځه**:- (خَ+ر+ل+ن+د+زه) (اِس مؤ وا ج: خرلنځې) ځپړې د ښوانهٔ یا بلنځې په شان یوه ونه

**خرلوډګلے**:- (خَ+ر+لو+ډ+ګ+لے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ)(۱)د خلقو ګڼه ګوڼه (۲)بې انتظامي، شور ژوړ

**ـــ جوړول**:- (اَف) اِص ګڼه ګوڼه جوړول، بې انتظامي کول، شور زوږ جوړول

**ـــ کېدل**:- (اَف) اِص ګڼه ګُوڼه جوړېدل، بې انتظامي کېدل، شور زوږ کېدل

**خرلے**:- (خ+رَ+لے) (اَف:پ (قاموس) مف مذ وا ج: خرلي (مؤ: خرلې) تراشلے ګرېدلے، خرېَلے

**خُرما**:- (خُ+ر+ما) (فا اِس مؤ) کجوره، چواره

**خرمچے**:- (خَ+ر+م+چے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خرمچي) یو قسم نرم بُوټے دے چې یو ګل کوي

**خرمست**:- (خَ+ر+مَ+س+ت) (فا اِس ص مذ (مؤ وا: خرمسته ج: خرمستې) (۱)مست بې تمیزه (۲)بې پروا

**خرمستي**:- (خَ+ر+مَ+س+تِي) (پ اِس مؤ) (۱)مستي، بې تمیزي، شور ژوړ (۲) بې پروائي

**ـــ کول**:- اِص (۱)مستي کول، بې تمیزي کول، شور ژوړ جوړول(۲)بې پروائي کولَ

**خرمندے**:- (خَ+ر+مَ+ن+دَ+ے) (اَف:پ (قاموس) اِس مز وا ج: خرمندي (مؤ: خرمندۍ) ورکوټے غونډ ځیز

**خَرمنډۍ**:- (خَ+ر+م+ن+ډ+ۍ) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ)یو قسم ونه

**خرمهره**:- (خَ+ر+مُ+ه+رَه) (پ اِس مؤ وا ج: خرمهرې)(۱)یو قسم دانه چې د خر په څټ کښې کېږي بیا هغه پرې کړي او کوډې جادو پرې کوي

**خرمېټے**:- (خَ+ر+مې+ټَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ (مؤ خرمېټۍ) غټ او غونډ مونډ سړے

**خرمېرے**:- (خَ+ر+مې+رَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خرمېري) یو قسم وابښهٔ

**خرنار**:- (خَ+ر+نا+ر) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) یو قسم وابښهٔ، سپین بنګ

**خرناوه**:- (خَ+ر+نا+وَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) یو قسم ورکوټې مرغۍ ده د دې اواز د غنمو وغېره د فصل د پاره د برکت او زیاتوالي سبب ګڼلے شي

**خرنج**:- (خ+رَ+ن+ج) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) بې اتفاق، ګردش

**خرنده**:- (خ+ر+ن+ده) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ وا ج: خرندې) خراش، ګرېدل)

**خرندې**:- (خ+ر+ن+دې) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) د چرګې یا د مرز (بټېر) په خاورو کښې د لوغړېدو حالت

**ـــ کول**:- (اَف) اِص د چرګې یا د مرز (بټېر) په خاورو کښې لوغړېدل

**خرنډ**:- (خ+رَ+ن+ډ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ)(۱)د ماشومانو بې وجې ژړا (۲)ضد، ذېل (۳) غوټې غوټې څانګه

مبادا چې د یو خرنډ له سینې اوزي
چې پـــه هره څانګه خوري ثمر تازه (میان جناب کاکاخیل)

**خرنډل**:- (خ+رَ+ن+ډ+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت) (۱)خفه کول، ناراضه کول(۲)سُورے کول (۳) ګنډل

**خرنډنه**:- (خ+رَ+ن+ډ+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) خفه کونه (۲) سُورے کونه (۳) ګنډنه

**خرنډوُکے**:- (خ+رَ+ن+ډوُ+کے) (اَف:پ (قاموس) فاع مذ وا ج: خرنډوُنکي (مؤ: خرنډونکې)(۱)خفه کووُنکے (۲) سُورے کووُنکے (۳) ګنډوُنکے

**خرنډېدل**:- (خ+رَ+ن+ډې+د+ل) (اَف:پ (قاموس) مص لا)(۱)بې موجبه ژړل (۲) ضد کول، ذېل کول(۳)خفه کېدل، ناراضه کېدل (٤) سُورے کېدل

**خرنډېدنه**:- (خ+رَ+ن+ډې+د+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص)(۱)بې موجبه ژړا کونه (۲) ضد او ذېل کونه(۳) خفه کېدنه (٤) سُورے کېدنه

**خرنډېدُونکے**:- (خ+رَ+ن+ډې+دُو+ن+کے) (اَف:پ (قاموس) مف مذ وا ج: خرنډېدونکي (مؤ: خرنډېدُونکې)(۱)ژړېدوُنکے (۲) ضد او ذېل کووُنکے (۳) خفه کېدوُنکے (٤) سُورے کېدوُنکے

**خرنګ**:- (خ+رَ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ)(۱)په لاسو یا پښو کراشېدلې

مزكه (٢)د دېوال په اړه باندې د پخو خښتو قطار

**خرنگے**:- (خ+رَ+ن+گے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ )يو لرگے چې جولاگان ئې د اودلو د پاره استعمالوي

**خرنل**:- (خَ+ر+نَ+ل) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ ) لويه نچه

**خرنه**:- (خ+ر+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص )په لاسو او پښو مزكه گرونه يا تراشنه

**ـــ كول**:-اص په لاسو او پښو مزكه گرول يا تراشل

**خُرنه**:- (خُ+رَ+نَه) (پ (ظفر) اِس مؤ وا ج: خُرني) خوژدنه

**ـــ كول**:- (ظفر) اص كوژدنه كول

**ـــ كېدل**:- (ظفر) اص كوژدنه كېدل

**خروار**:- (خَ+ر+وا+ر) (پ اِس مذ وا ج: خروارُنه) د خرهٔ بار، د وزن يو مقدار

گنج د عقل ځار شه د عاشق تر خاخكي اوښكو

نـــهٔ خـــروار د عقل نـــهٔ د عشق يوه دانه (رحمن بابا)

**خروتير**:- (خ+رو+تي+ر) (اَف:پ (قاموس) ص) د تمبې سر

**خرو تيے**:- (خ+رو+تيے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ ) (١)د غلې يوه پيمانه (٢) د پښتنو د يوې قبيلې غړے څوک چې د كوچيانو ژوند تېروي

**خَروتيــې ســپرغه**:- (خَ+رو+تي+س+پ+ر+غــه) (اَف:پ (قــاموس) اِس مــؤ ) د مېچنې د پل په شان يو قسم نقش چې د ډوډۍ په دسترخوان كولے شي

**خروډيک**:- (خ+رو+ډي+ک) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ ) يو قسم مرغۍ

**خرورگ**:- (خ+ر+و+ر+گ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ ) پنځ كليز گډ ، خرورگ

**خرورا**:- (خ+رو+را) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ ) يو قسم سبزي چې د پسرلي په شروع كښې كېږي

**خرورک**:- (خ+رو+رَ+ک) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ ) يو قسم ځنگلي سبزي چې سرهٔ او سپين گلونه كوي د پسرلي په شروع كښې كچه خوړے شي

**خرورے**:- (خ+رو+رے) (پ اِس مذ وا ج: خرورې (مؤ: خرورې) هغه سپے چې چيچل كوي او هر چاته خولهٔ اچوي

**ـــ كېدل**: -اص د سپي چيچوُنكے كېدل

**خروسک**:- (خ+رَو+س+َک) (پ (ظفر) اِس مذ ) د مرۍ يو رنځ، خُناق

**ـــ كېدل**:- (ظفر) اص خناق كېدل

**خروښ**:- (خ+رو+ش+يا خ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ ) سوخت، قهر، غُصه

**خروكه**:- (خ+رُو+كه) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـؤ وا ج: خروكي) يـو قسم خوارهٔ وابنهٔ

**خَروكے**:- (خَ+ر+وُ+كَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ )شخوند

**خَرول**:- (خ+ر+و+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت) خرَيل، كلول

**خرول**:- (خَ+ر+و+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت) تراشل، گرول، خرخره كول

**خـرول**:- (خ+رُو+ل) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ وا ج: خـرُولان) د كـوزې د پـاره د لرگي نه جوړ سرپوښ ، د لرگي برغولے

**خـرولال**:- (خ+رو+لا+ل) (اَف:پ (قـاموس) اِس مذ )د ماشومانو د پټ پټنوني د قسم يوه لوبه

**خروله**:- (خَ+ر+و+له) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ ج: خرولې) د ولې د قسم يوه ونه

**خرولے**:- (خَ+ر+و+لے) (اَف:پ (قاموس) مف مذ وا ج: خرولي (مؤ: خرولې) خر خره كړے، گرولے

**خرومبر**:- (خَ+رو+مَ+ژيـا گ) (اَف:پ (قـاموس اِس مـذ ) كـم عقـل او جنگيـالے سړے

**خرومه**:- (خ+رو+مَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ ) رزق، روزي، خوراكه، اَذوقه

**خروُنكے**:- (خ+رُو+ن+كے) (اَف:پ (قـاموس) فـاع مـذ وا: ج: خروُنكـي (مـؤ: خروُنكې) په لاسو يا پښو مزكه گرووُنكے

**خروُنگے**:- (خَ+رُو+ن+گَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خروُنگي) د پخو نه جوړ پُوزے

**خرونه**:- (خَ+ر+و+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص ) خرخره كونه، گرونه

**خرونه**:- (خ+ر+و+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص ) خريَنه، كلونه

**خَروه**:- (خَ+ر+وه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ ) يو قسم پودينه، وېلنے

**خره**:- (خَ+رَه) (پ (خل) اِس مؤ وا ج: خرې) خارو، خاروني، لالي، سپراكه

**خَـره**:- (خَ+رَه) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـؤ وا ج: خـرې) د غلې هغـه دلـې چـې لا بُوس ورسره وي، وانۍ

**ـــ كول**:- (اَف) اص غله دلۍ كول، وانۍ كول

**ـــ كېدل**:- (اَف) اص غله دلۍ كېدل، وانۍ كېدل

**خَـره**:- (خ+ره) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـؤ وا ج: خـرې) د لوښـو ايښـودو د پـاره د لرگي جوړه طاقچه

**خرهار**:- (خ+ر+ها+ر) (پ اِس مذ ) په يو مخ د خر خر اواز

**ـــ كول**:-اص د خرخر اواز كول

**خره پښه**:- (خره+پ+شَه يا خَه) (پ ص) ضد ، اړي، ذېل

**ـــ كېدل**:-اص ضد كول، اړي كول، ذېل كول، د كار كولو نه ښېخي انكار كول

**خره خـراړه**:- (خ+رَه+خ+را+ړه) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـؤ ) يـو قسم ډېره وړكوټې خراړه

**خـره زن**:- (ډ+رَه+زَ+ن) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ )هغـه دوه ښـاخه لـرگے چـې لاندې يا حالال كړے گډ پرې زوړند وي، موښے

**خره كے**:- (خَ+ره+ كے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ ) يو قسم نرم ازغن وابنهٔ چې د څاروو د پاره ئې د ژمي د خوراک د پاره جمع كوي

**خـره واژ**:- (خ+رَه+وا+ژ) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ ) خـره وژ، خـوارهٔ وابنــهٔ، د څاروو د خوراک يو قسم وابنهٔ

**خره وژ**:- (خ+رَ+و+َژ) (پ (ب،خ) اِس مذ ) و – خره واژ

**خرے**:- (خ+رَے) (پ (سو) اِس مذ وا ج: خري) خنډ ،سخت ازغے

**خرے**:- (خ+رَې) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ ) يو قسم دانه چې اكثر د پښـې په تلي كښې راخېژي

**خَرے**:- (خَ+رے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ ) (١)ضدي، ذېلي (٢) د نُوک درد

**خرياشک**:- (خَ+ر+يا+ش+ک) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ )يو قسم شين بوټے چې وبخ ئې خوري وي

**خرې په خرې**:- (خ+رې+په+خ+رې) (اَف:پ (قـاموس) ص) پـه كُشـتۍ كښـې د دوؤ پهلوانانو يو شانته شا لگېدل

**ـــ كېدل**:- (اف) اص پـه كُشـتۍ كښـې د دواړو پهلوانـانو برابـر كېـدل، پـه زور كښې برابر راتلل

**خرېټ**:- (خ+رې+ټ) (پ (اورک) اِس مذ ) ډېر، په يو ځاے، ټول

**خرېتے**:- (خ+رې+تَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ )د خلقو گڼه گُوڼه

**خَريد**:- (خَ+ري+د ) (فا اِس مذ ) خريداري، په بيعه اخستنه، په قيمت اخستنه

**ـــ كول**:-اص په پېسـو اخسـتل، بيعـه كول، څهٔ څيـز د قيمت پـه بـدل كښـې اخستل

**ـــ كېدل**:-اص په پېسو اخستلے كېدل، بيعه كېدل،

**خريـدار**:- (خَ+ري+دا+ر ) (فـا اِس فـاع مـذ وا ج: خريـداران (مـؤ وا: خريـداره ج: خريدارې) په پېسو اخستوُنكے، بيعه كووُنكے

چې شاگرد په بې انصافه استاد پېښ شي

وائي دا مې دے مرئي دے خـــريدار شه (علي خان)

**خريداري**:- (خَ+ري+دا+ري) (فا اِس مؤ ) په بيعه اخستنه، د قيمت پـه بـدل كښې اخستنه

**خربدل**:- (خ+رِيِ+د+ل) (پ مص لا) (۱)خرخره کېدل، ګربدل (۲)خرهار کول، په خوب کښې د خر خر اواز کول

**خربدلے**: (خ+رِيِ+دَ+لے) (پ مف مذ و اج: خربدلي (مؤ: خربدلې)خره خره شوے، ګربدلے

**خربدنګ**:- (خ+رِيِ+د+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و خربدنه

**خربدنه**:- (خ+رِيِ+د+نه) (پ حمص) خربدنګ، خرخره کېدنه، ګربدنه

**خربدُونکے**:- (خ+رِيِ+دُو+ن+کے) (پ فاع مذ و اج: خربدوُنکي (مؤ: خربدوُنکې) خرخره کېدوُنکے، ګربدوُنکے

**خربرکه**:- (خ+رِيِ+ر+که) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ و اج: خربرکې) ورُوکې خاره

**خرپړے**:- (خ+رِيِ+ړَے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) (۱)خرپړے يو قسم خوارک چې په شُلمو کښې د پيو دارې وهي (۲)وران ماستهٔ

**ـــ کول**:- (اَف) اص (۱)خرپړے جوړول (۲) ګډ ګاډ پړه کول

**ـــ کېدل**:- (اَف) اص خرپړے جوړېدل

**خپدک کېدل**:- (اَف) اص د چا سترګه بې ځايه کېدل

**خرپړے**:- (خَ+رِيِ+ړے) (پ اس و اج: خرپړي) دَړونے، دُوړنګ، (ګن) خوښه

**خريز /خـــريځ**:- (خ+رِيِ+ز) (اَف:پ (قـاموس) ا،س مـذ و اج: خريزُونـه) (۱)د مېچنې تيرک، مرده (۲)د کباب سيخ (۳)د مارغهٔ د نُوک تېرهٔ ځُوکه (۴)د رشقې يا د پُنبې تېرهٔ منه چې د رودلو نه پس پاتې شي (۵)د جوارو د ټانټې پرېکړے موښه

**په خريزونوختل**:- اص (سو) د ماشوم ناقلاره کېدل

**خريزکے**:- (خ+رِيِ+ز+کے) (پ (سو) اس مذ و اج: خريزکي) ورُوکے موښه کرکے

**خـريس**:- (خ+رِيِ+س) (پ (ګن) اس ص مـذ و اج: خريسـان (مؤ و ا: خريسـه ج: خريسې) (۱)پوهر، ګنده، غليظ، خيرن، ميلا (۲) ډېر غټ

**خَريف**:- (خَ+رِيِ+ف) (ع اس مذ) (۱)د منې موسم (۲) هغه فصل چې کرئې د اَړ او کتک تر مېنځ کولے شي، لکه غټ نرې جوار او باجره وغېره

**خريَل**:- (خ+ر+يَ+ل) (پ مص مت) وېښتهٔ کلول

**خريلے**:- (خ+ر+يَ+لے) (پ مف مذ و اج: خريلي (مؤ: خريلې)کَل شوے

**خريمه**:- (خ+رِيِ+مَه) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ و اج: خريمې) د خرې وار راوړل

**ـــ کېدل**:- (اَف) اص د خرې وار راوړل، د خرې ګرمېدل

**خرينګ**:- (خ+ر+يَ+ن+ګ) (اَف:پ: (قاموس) حمص) و - خرينه

**خرينه**:- (خ+ر+يَ+نه) (پ حمص) خرينګ، وېښتهٔ کلونه، کل کَونه

**خريوُنکـے**:- (خ+ر+يـو+ن+کے) (پ فـاع مـذ و اج: خريـوُنکي (مـؤ: خريـُونکې) (۱)کلووُنکے، کل کووُنکے، (۲) نائي

**خريُونے**:- (خ+ر+يُو+نے) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ و اج: خريُوني (مؤ: خريُونې) خريوُنکے

**خړ**: (خ+ړ) (پ ص مذ (مؤ و ا: خړه ج: خړې) (۱)خړ رنګے، خاکي (۲) شرمنده، شرمېدلے (۳) په خاورو لړلے

اهسته دروُمـــــه، د سحر باده

د يار ګيسو به په خاورو خړ شي (پير محمد کاکړ)

**ـــ کول**:- اص (۱)خړول شرمنده کول، شرمول (۲)په خاورو لړل

**ـــ کېدل**:- اص (۱)خړېدل شرمنده کېدل، شرمېدل

خړ شو ستا له ساده مخه مخ د ناوې

کــه هـــزار ځلــه ئې که زېور طرف (حميد)

(۲)په خاورو لړلے کېدل

**خړ**:- (خَ+ړ) (پ (ظفر) اس مذ و اج: خړونه)خړ، د سيلاب د اوبو لاړ

**خَړ**:- (خَ+ړ) (پ (راورټي) اِس صو مذ) د اُلټيې، بکۍ يا قے کولو په وخت اواز

**ـــ وهل**:-اص قے کول، له مخه کول

**خړاکه**:- (خ+ړا+که) (پ (ب،خ) اس مؤ و اج: خړاکې) و - خړک

**خړامبوکے**:- (خ+ړا+م+بو+کے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ )ساتلے شوے، چُست

**خــړاميچ**:- (خ+ړا+مـې+چ) (اَف:پ (قـاموس) ا،س مـذ (مـؤ وا: خړاميچـه ج: خړاميچې) چخچيت، چيختاړ، چخنې شوے، تر پښو لاندې مبتلے شوے

**خړانګــه**:- (خ+ړا+نَ+کـه) (اَف:پ (قـاموس) اس مـؤ و اج: خړانکـې) خړانـه، خړۍ، يو قسم ورکوټے خړ رنګے مرغۍ

**خړانګه**:- (خ+ړا+ن+ګه) (پ اس مؤ و اج: خړانګي) د ونې غټه او نېغه څانګه

**خړانګـې وړانګـې**:- (خ+ړا+ن+ګې+و+ړا+ن+ګې) (پ (شـن ص) و - خرانګـې ورانګې

**ـــ پرېوتل**:- اص و ـــخړانګې وړانګې پرېوتل

**خړانه**:- (خ+ړا+نه) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) و ـــخړانګه

**ـــ کول**:-اص يو تر بله جنګ کول

**ـــ کېدل**:-اص جنګېدل

**خړائے**:- (خَ+ړا+ئے) (پ (وز+ب،خ)اس ص مـذ) (۱)خړ رنګے، خړېخن (۲) بې سيل، بې شرم

**خړاوه**:- (خ+ړا+وَه) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ )(۱)د سپو په خپل مېنځ کښې يو تر بله جنګ (۲) مجازاً د بنيادمو يو تر بله شور ژوړ، په نهٔ څهٔ خبره يو تر بله خولهٔ اچول

**خړبخن**:- (خ+ړ+ب+خَ+ن) (پ ص مذ (مؤ وا : خړ بخنه ج: خړبخنې) خړ شانته لړغونډې خړ، خړائے

**خړپ**:- (خ+ړَ+پ) (پ (ظفر) اس مذ و اج: خړپُونه) (۱)په څهٔ څيز کښې غابښونه منډنه (۲)ناشوړته خبره

**خــړپ**:- (خ+ړَ+پ) (پ اس مـذ) (۱)د څـهٔ څيـز د ماتېـدو يـا پرېوتـو اواز (۲)دبدبه، شان شوکت

**خړپا**:- (خ+ړ+پا) (پ اس صو مؤ) د څهٔ څيز د پرله پسې پرېوتو اواز

**خړپړ**:- (خ+ړ+پ+ړ) (پ ص مذ (مؤ وا : خړه پړه ج: خړې پړې) د دوړُونه ډک، په خاورو لړلے

**ـــ کېدل**:- اص په خاور لړلے کېدل، په خاور تپلے کېدل

**خړپوځې**:- (خ+ړ+پو+ت+سې) (پ اس مؤ) خاړپوځې، د ماشوم په ځلور بولې تلل

**په خړپوځو تلل**:-اص و ـــخړپوځې کول

**ـــ کول**:-اص خاړپوځې کول، د ماشوم په ځلور بولے تلل په خړپوځو تلل

**په خړپوځو کېدل**: ـــاص د ماشوم دې عمر تـه رسېدل چې پـه ځلـورو بـولـے ،د يـو ځاے نه بل ځاے ته تلے شي

**خړپوخړُوپ**:- (خ+ړَ+پ+وُ+خَ+ړُو+پ) (پ اس مذ) کړپ وکړوپ، د پرتو لوښو يو بل سره د لګېدو اواز

**خړپــول**:- (خ+ړَ+پ+و+ل) (پ مـص مـت )(۱)د څـهٔ څيـز نـه پـه مـاتولو اواز راوکښل (۲)په لتو وهل ټکول

**خړپــولے**:- (خ+ړَ+پ+و+لے) (پ مـف مـذ و اج: خړپـولي (مـؤ: خړپـولې )(۱)پـه ماتولو د څهٔ څيز نهٔ اواز راوکښلے (۲)په لتو وهلے ټکولے

**خړپونه**:- (خ+ړ+پ+و+نه) (پ حمص )(۱)د څهٔ څيـز نـه پـه مـاتولو اواز راوکښـنـه (۲)په لتو وهنه ټکونه

**خړپووُنکـے**:- (خ+ړ+پ+وُو+ن+کـے) (پ فـاع مــذ و اج: خړپــووُنکي (مــؤ: خړپـووُنکې) (۱)د څـهٔ څيـز نـه پـه مـاتولو اواز راوکښـووُنکے (۲)پـه لتـو وهوُنکے ټکووُنکے

**خړپهار**:- (خ+ړ+پ+ها+ر) (پ اس صو مذ) خړپے، د څۀ ځيز د ماتولو يا وهلو پرله پسې اواز

**خړپے**:- (خ+ړ+پے) (پ اس مذ) و - خړپهار

**خړپېدل**:- (خ+ړ+پې+د+ل) (پ مص لا) (۱)د څۀ ځيز په زوره سره راپرېوتل (۲)په زور سره د څۀ ځيز وهلے کېدل

**خړپېدلے**:- (خ+ړ+پې+دَ+لے) (پ مف مذ وا ج: خړپېدلي (مؤ: خړپېدلې) (۱)څۀ ځيز په زوره سره راپرېوتلے (۲)په زور سره وهلے شوے

**خړپېدنه**:- (خ+ړ+پې+د+نه) (پ حمص) (۱)د څۀ ځيز په زوره سره راپرېوتنه (۲)په زور سره وهلے کېدنه

**خړپېدونکے**:- (خ+ړ+پې+دُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خړپېدونکي (مؤ: خړپېدونکې) (۱)په زور سره راپرېوتونکے (۲)په زور سره وهلے کېدونکے

**خړتم**:- (خَ+ړ+ت+م) (پ ع: خرطوم اس مذ) د اتي سونډ (۲)اُوږده پوزه
په استين کښې چې ښۀ لاس د سخا نۀ وي
پلـمـيد تـر دے د هـاتـي تـر خـرتم ماته

**ــــ اچول**:- (راوړتي) اص (۱)پوزه سوڼ کول (۲)غټې او لوې خبرې کول

**خړتوب**:- (خ+ړ+تو+ب) (پ اس مذ) (۱)خړتيا، خړوالے، خړ رنګ والے (۲)شرمندګي، شرمېدنه

**خړتې**:- (خ+ړ+تې) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) کړتې، بې ځايه او فضولې خبرې، عبث او بې فائدې خبرې

**ــــ کول**:- اص بې ځايه او فضولې خبرې کول، عبث او بې فائدې خبرې کول، کړتې کول، کړتېدل

**خړتيا**:- (خ+ړ+ت+يا) (پ اس مؤ) و - خړتوب

**خړتې پړتې**:- (خ+ړ+تې+پ+ړ+تې) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) حيلې بانې

**ــــ کول**:- (اَف) اص حيلې بانې کول، د څۀ کار نه ځان خلاصول

**خړجن**:- (خ+ړ+ج+ن) (پ ص مذ (مؤ وا: خړجنه ج: خړجنې) (۱)خړ رنګے، خاکي (۲)خيرن، ګنده

**خړجن توب**:- (خړجن+تو+ب) (پ اس مذ) (۱)خر رنګ والے (۲)خيرنوالے

**خړچ**:- (خ+ړَ+چ) (پ اس مذ) د لرګي يا د څۀ سخت ځيز د ماتيدو اواز، کړس، خړس

**ــــ کول**:- اص د لرګي ماتولو اواز ويستل

**ــــ کېدل**:- اص د لرګي ماتېدو اواز کېدل

**خړچول**:- (خ+ړ+چ+و+ل) (پ مص مت) د لرګي يا د څۀ سخت ځيز نه په ماتولو اواز اوکښل

**خړچولے**:- (خ+ړ+چ+و+لے) (پ مف مذ وا ج: خړچولي (مؤ: خړچولې) د لرګي يا د څۀ سخت ځيز نه په ماتولو اواز اوکښلے

**خړچونه**:- (خ+ړ+چ+و+نه) (پ حمص) د لرګي يا د څۀ سخت ځيز نه په ماتولو اواز اوکښنه

**خړچوونکے**:- (خ+ړ+چ+وُو+ن+کے) (پ فاع مذ وا ج: خړچوونکي (مؤ: خړچوونکې) د لرګي يا د څۀ سخت ځيز نه په ماتولو اواز اوکښونکے

**خړچهار**:- (خ+ړ+چ+ها+ر) (پ اس صو مذ) خړچے، پرله پسې د لرګي يا د څۀ سخت ځيز د ماتېدو اواز

**خړچے**:- (خ+ړ+چے) (پ اس مذ) خړچهار

**خړچېدل**:- (خ+ړ+چې+د+ل) (پ مص لا) د لرګي د ماتيدو په وخت اواز کېدل

**خړچېدنه**:- (خ+ړ+چې+د+نه) (پ حمص) د لرګي د ماتيدو په وخت اواز کېدنه

**خړچېدونکے**:- (خ+ړ+چې+دُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خړچېدونکي (مؤ خړچېدونکې) د ماتېدو په وخت د لرګي اواز کېدونکے

**خړځن**:- (خ+ړ+ت+س+ن) (اَف:پ (قاموس) اس مذ (مؤ وا: خړځنه ج: خړځنې)
بلغمي سړے، هغه سړے چې بلغم ئې زيات وي

**خړز**:- (خ+ړ+ز) (پ اس صو مذ) (۱)د ټوپک د خلاصېدو اواز (۲) د څۀ ځيز په زوره د غورزېدو اواز

**خړزول**:- (خ+ړ+ز+و+ل) (پ مص مت) (۱)ټوپک خلاصول (۲)دواړه لاسونه پړقول، تاړي وهل

**خړزونه**:- (خ+ړ+ز+و+نه) (پ حمص) (۱)ټوپک خلاصونه (۲)دواړه لاسونه پړقونه، تاړي وهنه

**خړزوونکے**:- (خ+ړ+ز+وُو+ن+کے) (پ فاع مذ وا ج: خړزوونکي مؤ: خړزوونکې) (۱)ټوپک خلاصوونکے (۲)دواړه لاسونه پړقوونکے، تاړي وهونکے

**خړزهار**:- (خ+ړ+ز+ها+ر) (پ اس صو مذ) (۱)خړزے پرله پسې د ټوپک د فائرونو اواز (۲)پرله پسې د لاسونو پړقولو اواز (۳)د څۀ ځيز د پرله پسې پرېوتو اواز

**خړزے**:- (خ+ړ+زے+د+ل) (پ اس مذ) خړزهار

**خړزېدل**:- (خ+ړ+زې+د+ل) (پ مص لا) (۱)ټوپک چلېدل (۲) لرګے ماتېدل

**خړزېدنه**:- (خ+ړ+زې+د+نه) (پ حمص) (۱)ټوپک چلېدنه (۲)لرګے ماتېدنه

**خړزېدونکے**:- (خ+ړ+زې+دُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خړزېدونکي (مؤ: خړزېدونکې) (۱)ټوپک چلېدونکے (۲) لرګے ماتېدونکے

**خړس**:- (خ+ړ+س) (پ اس مذ) کړس، د لرګي يا د بل څۀ سخت ځيز د ماتېدلو اواز

**خړسا**:- (خ+ړ+سا) (پ اس صو مؤ) خړسهار، کړسا، کړسهار، د لرګي يا د څۀ سخت ځيز د ماتېدلو يا وهلو پرله پسې اواز

**خړسترګے**:- (خ+ړ+س+ت+ر+ګے) (پ اس ص مذ وا ج: خړسترګي (مؤ: خړسترګې) (۱)چې سترګې ئې خړې وي (۲)شرمېدلې

**خړسند**:- (خ+ړ+س+ن+د) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) کړوسند، کروسند، کړسند، ډډ او زر ماتېدونکې لرګې

**خړسول**:- (خ+ړ+س+و+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت) (۱)په لتو وهل، کړسول (۲)لرګي وغېره نه په ماتولو اواز ويستل

**خړسونه**:- (خ+ړ+س+و+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) (۱)په لتو وهنه (۲)لرګي وغېره نه په ماتولو اواز ويستنه

**خړسوونکے**:- (خ+ړ+س+وُو+ن+کے) (اَف:پ (قاموس) فاع مذ وا ج: خړسوونکي (مؤ: خړسوونکې) (۱)په لتو وهونکې (۲)د لرګي نه په ماتولو اواز ويستونکې

**خړسه**:- (خ+ړ+سه) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ وا ج: خړسې) د آسمان تندر، آسماني بجلې

**خړسهار**:- (خ+ړ+س+ها+ر) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) (۱)خړسې، د لرګي وغېره د ماتېدو پرله پسې اواز (۲)د وهلو ټکولو پرله پسې اواز

**خړسے**:- (خ+ړ+سې) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) خړسهار

**خړسېدل**:- (خ+ړ+سې+د+ل) (اَف: پ (قاموس) مص لا) (۱)وهلې کېدل (۲)په ماتېدو د لرګي وغېره اواز کېدل

**خړسېدلے**:- (خ+ړ+سې+دَ+ لے) (اَف:پ (قاموس) مف مذ وا ج: خړسېدلي (مؤ: خړسېدلې) (۱)وهلے شوے (۲)د ماتېدو په وجه د لرګي اواز کړے

**خړسېدنه**:- (خ+ړ+سې+د+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) (۱)وهلے کېدنه (۲)د ماتېدو په وجه د لرګي اواز کېدنه

**خړسېدونکے**:- (خ+ړ+سې+دُو+ن+کے) (اَف:پ (قاموس) مف مذ وا ج: خړسېدونکي (مؤ: خړسېدونکې) (۱)وهلے کېدونکے (۲)د ماتېدو په وجه د لرګي اواز کېدونکے

**خړګاوه**:- (خ+ړ+ګا+وَه) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) خړه، خړے اوبۀ، د سېلاب

د ختيو نه ډې اُوبه

**خړ ګبيځ**: - (خ+ړ+ګ+بي+د+ز) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) ډېر د وختـه، چې لا سپېدې نۀ وي چاوډې، د مُلا بانګ نه مخکښې، دسپينې رڼا د خړېدو نه مخکښې، د شپې چاودے وخت

**خړل**: - (خ+ړ+ل) (پ مص مت) (۱)ډکې متياې کول، غُل کول (۲)ماتې خوړل

**خړلے**: - (خ+ړ+ل+ے) (اِس مذ) د منړګ نه لړ لوے ځناور چې د څرمنې نه ئې پوستين جوړيږي

**خړلمے زېـږن**: - (خـړلمے+زې+ړ+ن) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ) هغـه اَس چې زېړبخن رنګ ئې وي او په شا ئې د څټ نه تر لکۍ پورې کرښه وي

**خړلے**: -(خ+ړَ+ لے) (پ مف مذ وا ج: خړلي (مؤ: خړلې) هغه سرے چې په ځا ے کښې ئې ډکې ميتازې کړې وي

**خړمبن**: - (خُ+ړ+م+ب+ن) (پ (ب،خ) اِس ص مذ و ج: مؤ وا: خړمبنه ج: خړمبنې) خړمبزن، هغه څوک چې پوره ئې هر وخت ګنده وي، ګرنګور

**خړمټ**: - (خ+ړ+مَ+ټ) (اَف: (قاموس) اِس مـذ) ګُرنګ، د پوزې خراشکي، د پوزې ګند

**خَړموټ**: - (خ+ړ+مو+ټ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) د ماشومانو يو قسم لوبه

**خړمور**: - (خ+ړ+مو+ر) (اَف:پ (قاموس) اِس مذَ) يو قسم مارغـۀ، د ميور د قسم يو مارغۀ

**خَړمور**: - (خَ+ړ+مو+ر) (اَف:پ (قاموس) ص) ورانه او خرابه مزکه، شاړه مزکه

**کېدل**: - (اَف) اص ، مزکه خرابېدل، مزکه ورانېدل، يا شاړېدل

**خړمبزن**: - (خُ+ړ+مبِ+ز+ن) (پ اِس ص مـذ مـؤ: وا: خړمبزونـه ج: خړمبزنـې) خړمبن، ګرنګور، هغه څوک چې پوزه ئې هر وخت ګنده وي

**خـړن**: - (خ+ړ+ن) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ (مـؤ وا: خړنـې) (۱)ډېـر خـوراکې سړې، خېټُو، خېټور (۲) لاړے، يو قسم تر يو بُوټے چې اوښان ئې په مينه خوري

**خَړن**: - (خَ+ړ+ن) (پ ص مذ (مؤ وا: خړنه ج: خړنې) خُړۇ، يرندوکې، ډارن

**خړن توب**: - (خړن+تو+ب) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) خړنتيا، خېټور توب

**خړنتيا**: - (خړن+ت+يا) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) و ـ خړن توب

**خړنج**: - (خ+ړ+ن+ج) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)بے اتفاقي (۲) وراني

**اچول**: - اص بې اتفاقي پېدا کول

**کول**: - (اَف) اص (۱) بې اتفاقي کول (۲) وراني کول

**خړنـد**: - (خ+ړ+ن+د) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ) (۱)د بـابونے د بـوټي وېـخ (۲)د غنمو وغېره فصل د رودلو نه پس چې په مزکه کښې مونډان پاتې شي

**خړنډ**: - (خَ+ړ+َن+ډ) (پ (راوړتې) اِس مذ وا ج: خړنډُونه) خريز، نـاړ، د اونـې يـا د بوټې مونډ، خړند

**خړنګ**: - (خ+ړ+َن+ګ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) يو قسم ځنګلې سمسره

**خړنګې**: - (خ+ړ+َن+ګې) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ) يـو ځنګلې وابـۀ چې وړې خړې پاڼې او آسمانې رنګ ګل لري

**خړنه**: - (خ+ړ+َنه) (پ حمص) اودس ماتې کونه

**خَړو**: - (خَ+ړُو) (پ ص) و ـ خَړن

**خړوالے**: - (خ+ړ+وا+ لے) (پ ص مذ) (۱)خړ رنګ وا لے (۲) شرمندګې

**خـړوب**: - (خ+ړو+ب) (پ اِس مـذ) (۱)د ختيـو نـه ډې اُوبـۀ، خـړې اُوبـه (۲)سيراب اُوبه شوے

په آسانه به خړوب نۀ شې په وصل
دے د هـــجر وهلې زمـــا روح (علي خان)

**خړوب کول**: -اص (۱)په ختيو لړل (۲)خړوبول، اوبۀ کول مزکې ته اوبۀ ورکول

په پياله مې د رحمت سره سره خړوب کړه
سينه سـوے لـــوغــــړن يـم زما ربَه (بېدل)

**کېدل**: -اص (۱)ختيو سره لړلې کېدل (۲)خړوبېدل، اوبۀ کېدل، مزکې تـه اوبۀ ورکولې کېدل

ستا په تش ديدن مې هسې زړۀ خوشحال
شې لـــکه تږے په اوبو شي ښۀ خړوب (خوشحال بابا)

**خړوبن**: - (خ+ړو+ب+ن) (پ اِس ص مذ) په چيکړو او ختيو لړلې، پـه خيرنو اوبو لړلې

**خړوبول**: - (خ+ړو+ب+و+ل) (پ مص مت) (۱)فصل خړوب کول، پټې تـه اوبۀ ورکول

اور د غم په زيم باران د اوښکو وژنې
پېښور وطن خړوب پـــــه دا تيراه که (علي خان)

(۲)د ختيو په اوبو لړل (۳)د کوټې دېوالُونه په خړو اوبو چوپه کول

**خړوبونګ**: - (خ+ړو+ب+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خړوبونه

**خړوبونه**: - (خ+ړو+ب+و+نه) (پ حمص) (۱)خړوبونګ، سيراب کَونه، فصل ته اوبۀ ورکونه (۲)د کوټې دېوالونه په خړو اوبو چوځۀ کونه

**خړوبوُنکے**: - (خ+ړو+ب+وُو+ن+ک ے) (پ فـا ع مـذ وا ج: خړوبـوونکي (مـؤ: خړوبـوُونکې) (۱)سيرابوُونکے، فصل تـه اوبـۀ ورکـوُونکے (۲)د کـوټې دېوالونه په خړو اوبو چوپه کوونُکے

**خړوبے**: - (خ+رو+بَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)ګړوبے، خړے اوبۀ چې د کور دېوالونه پرې چوپه کولې شي

**کول**: - (اَف) اص (۱)د کور د دېوالُونه چوپه کولو د پاره خړے اوبۀ جوړول (۲)د ګړو د پاره د آړوتوب جوړول

**کېدل**: - (اَف) اص (۱)د کور ديوالونه په خرو اوبو چوپه کېدل (۲)ګړو د پاره د اُړواتوب جوړېدل

**خړوبېدل**: - (خ+ړو+بې+د+ل) (پ مص لا) (۱)فصل خړوب کېدل، سيراب کېدل، پټې اوبۀ کېدل (۲)په خړو اوبو لړلې کېدل (۳)د کوټې دېوالُونه خړوب کيدل

**خړوبېدنګ**: - (خ+ړو+بې+دَ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص)

**خړوبېدنه**: - (خ+ړو+بې +د+نه) (پ حمص (۱)خړوبېدنګن، سيراب کېدنه، فصل اوبۀ کېدنه (۲)په خړو اوبو لړلې کېدنه (۳)د کوټې دېوالُونه خړوب کېدنه

**خړوبېدُونکې**: - (خ+ړو+بې+دُو+ن+کې) (پ مف مذ وا ج: خړوبېدونکي (مؤ: خړوبېدوُنکې) (۱)فصل سيراب کېدوُنکے، اوبۀ کېدوُنکے (۲)د کوټے دېوال ته ګړوبے ورکولې کېدوُنکے

**خړوُپ**: - (خ+ړُو+پ) (پ اِس صو مذ) غړوپ، په څۀ ډډ څيز کښې د بل څيز د پرېوتو يا ننوتو اواز

**خړوُپـول**: - (خ+ړُو+پ+و+ل) (پ مص مت) په څۀ ډډ څيز کښې بل څيز ننه ايستل چې اواز ترې پېدا کېږي، خړُوپونه

**خړوُپونه**: - (خ+ړُو+پ+و+نه) (پ حمص) و ـ خړُوپول

**خړوبے**: - (خ+ړو+بَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) ګرمې شوملې

**خړوُبے**: - (خ+ړُو+ بَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خُړپيان) يو قسم د لرګې نه جوړ غشے چې د مرغو ښکار پرې کول شي

**خړوُپيدل**: - (خ+ړُو+پې +د+ل) (پ مص لا) د يو څيز په بل څيز کښې دننه کېدو په وخت اواز پېدا کېدل، خړوُپېدنه

**خړوُپيدنه**: - (خ+ړُو+پې+د+نه) (پ حمص) و - خړُوپېدل

**خړورګ**: - (خَ+ړ+وَ+ر+ګ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) و - خَورګ

**خړُوز**: - (خ+ړُو+ز) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) د ټوپک وغېره د چلېدو اواز

**خړوس**: - (خ+ړُو+س) (پ ص مذ وا ج: خړوُسان) (۱) بې همتـه، ناراستـه، بې

بنې بې توبنې (۲)غټ څورب سړے، خرېس

**خرُوستوب**:- (خ+رُو+س+تو+ب) (پ اِس مذ ) (۱)خرُوستيا، خرُوسوالے ، بې همتي، ناراستي (۲)غټوالے ، څوربوالے، بے ډوله توب

**خرُوستيا**:- (خروُس+ت+يا ) (پ اِس مؤ ) و –خروس تُوب

**خرُوسکه**: (خ+رُو+س+کـه) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـؤ ) (۱)خورسکه، تېـزه بـد بوئ، ډډُوزه، (۲) تريخ لُوګے

**خروسکې پرې لګېدل**:- (ظفر) اص په وبا تباه کېدل، د سينې ختمېدل

**خرُوسکې ختل**:- (ظفر) اِص ډډُوزې ختل

**خرُوسوالے**:- (خروُس +وا+ لے ) (پ اِس مذ ) و –خروس توب

**خرُوسه**:- (خ+رُو+سَه ) (پ (ادرک)اِس مؤ وا ج: خروسي ) بئين، وربمه

**خـرول**:- (خ+ر+و+ل) (اَف:پ (قـاموس) مـص مـت) څـۀ ځنـاور پـه خـاورو ختـو کنبـې رغړول، لوغړول

**خـرول**:- (خ+ر+و+ل) (پ مـص مـت ) (۱)پـه خـاورو لـړل (۲)اوبـو کنبـې خـاوره ګډول (۳)څۀ څيز ته خړ رنګ ورکـول (٤)شرمول، شرمنده کـول (٥)د څۀ خبره ورانولو د پاره بانه جوړول

**اُوبۀ خړول**:-اِص څۀ معامله ورانولو ته بانه لټول

**جامې خړول**:-اِص جامو ته خړ رنګ ورکول

**ځټ خړول**:-اِص راپرزول، په شا راغورځول

**سترګې خړول**:-اِص نيت بدول، بدنيته کېدل، خبره نۀ منل

**طبعيت خړول**:-اِص په څۀ خبره خفه کول

**څوک په مجلس کښې خـړول**:-اِص څـوک پـه ګڼه کې شرمول، د ډېـرو خلقـو پـه مخښې شرمنده کول

**خرُونکے**:- (خ+رو+ُن+کے ) (پ فاع مذ وا ج: خرُونکي ) اودس ماتے کوونکے

**خرونګ**:- (خ+ر+و+ن+ګ ) (اَف:پ (قاموس) حمص ) و - خرونه

**خرونه**:- (خ+ر+و+نه ) (پ حمص ) (۱)خرونګ، په خاورو لړنه (۲)شرمونه، شرمنده کونه

**خروُونکے** :- (خ+ر+وُون+کے ) (پ فاع مذ وا ج: خروُونکي (مؤ: خرو ُنکې ) (۱)پـه خاورو لړوُنکے (۲)خړ رنګ ورکووُنکے (۳)شرمووُنکے ، شرمنده کووُنکے

**خروُونکے**: (خ+ر+وو+ُن+کے ) (اَف:پ (قـاموس) فـاع مـذ وا ج: خروُونکي (مؤ: خروُونکې ) په خاورو ختو کنبې رغړوُونکے، په ختو کنبې لُوغړووُنکے

**خړه**:- (خ+ړه ) (پ ص مؤ وا ج: خړي ) (۱)د خړ مونث، خاکي (۲)د سحر تتـه رڼا ، وختـه (۳)د سيلاب خړے اوبـۀ، لهـه او ختې (٤)دښمني، بـدي (٥)خړ رنګے وريځ، لکه توره ويرول کوي خړه ورول کوي (متل) (٦)لوے بول

**خړه بيول**:- (اَف) اِص د سيلاب پـه ذريعـه د زمکې نـه خـاوره بيـول چې اوچتـه زمکه پرې کَښته شي

**ـــ خوربدل**:-اِص خړه وريځ راتلل، دُوند خورېدل

**ـــ راتلل**:-اِص د دؤو په مېنځ کنبې دښمني يا بدي راتلل

**ـــ کښل**:- (اَف) اِص لُغ: ختې ويستل

**ـــ ورکول**:- اِص زمکې ته د سيلاب خړې اوبۀ ورکول چې زمکه پرې ځربـه او اوچته شي، زمکه خړوبول

**په خړه کنبې تلل**:- اِص سحر وختي تلل

**خړهـار**:- (خَ+رَ+هـا+ر ) (پ (راورټې) (اِس صـو مـذ ) د خړ وهلو اواز د قې يـا باکۍ کولو اواز

**خـړه پـره**:- (خـړه+پ+ره ) (پ ص مـؤ وا ج: خـړي پـړې) (۱)بيخـې خـړه (۲)ډېـره ساده (۳)سحر وخت

**خـړه پښتنه**:- (خړه+پش+يا پ+خ+ت+نَه ) (پ اِس ص مؤ وا ج: خړې پښتنې) (۱)اصلي او سوچه پښتنه (۲)ساده پښتنه

**کېدل**:- اِص اصلي پښتنه کېدل، سُوچه پښتنه کېدل

**خړه کے**:- (خ+ړه+کے ) (پ ص مذ وا ج: خړکي (مـؤ: خړکـۍ) (۱)د خـاکې رنـګ، خړ رنګے (۲)ساده

**خړی**:- (خ+ړی) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ ) خړانګه، يو قسم خړ رنګې مرغۍ

**خړی بړی**:- (خړی+ب+ړی) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ ) منت زاري، خواست

**کول**:- (اَف) اِص منت زاري کول، خواست کول

**خړے**:- (خَ+ړَے ) (پ (بن) اِس ص مذ وا ج: خړې ) خړ رنګے، خړبخن

**خـړې پـړې**:- (خـړې+پ+ړې ) (پ ص مـؤ وا ج: خـړي پـړي ) (۱)ګېـډه ور، ډېـر خوراکي (۲)د انسان بولې، ډکې متيازې

چې خدا ے ورسره بد شي

پـــه بـــاران خړے ورشي

**خړې پړې** :- (خَ+رَې+پَ+ړَې ) (پ ص ) سپور، سپېرۀ

**خړې پړې**:- (خَ+ړې+پَ+ړې ) (پ (روشن) ص ) اَغه دغه

**خړيـت**:- (خ+ړِي+ت+ ) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ (مـؤ وا: خړيـت ج: خړيتـي ) (۱)پلن پوزے، هغه سړے چې پوزه ئې پلنـه وي (۲)ډېـر زوړ او وروست (۳)ډېر بُوډا او عمر خوړلې

**خړيت پزے**:- (خړيت+پ+زے ) (اَف:پ (قاموس) اِس ص مذ وا ج: خړيت پزي (مؤ: خړيت پزې) پلن پوزے، هغه څوک چې پوزه ئې پلنه وي

**خړيت تـوب**:- (خړيت +تو+ب ) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ ) (۱)خړيتوالے، پلن والے (۲) زوړ والے، وروستوالے (۳)بُوډاتوب

**خړيتوالے** :- (خړيت+وا+لے ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ ) و- خړيت توب

**خړيتول**:- (خ+ړِي+ت+و+ل ) (اَف:پ (قاموس) مـص مـت ) (۱)پلنـول (۲) زړه ول، ورستول (۳) بوډا کول

**خړيتونګ**:- (خ+ړي+ت+وَ+ن+ګ ) (اَف:پ (قاموس) حمص ) و - خړيتونه

**خړيتونـه**:- (خ+ړِي+ت+و+نـه ) (اَف:پ (قـاموس) حمـص ) (۱)خړيتونـګ، پلنرنـه (۲)زړونه، ورستونه (۳) بوډاکونه

**خړيته پزه**:- (خ+ړي+ته+پَ+زه ) (اَف:پ (قاموس) اِس ص مؤ وا ج: خړيتـي پـزي) پلنه پوزه

**خړيتی**:- (خ+ړِي+تی) (اَف:پ (قـاموس) اِس ص مـؤ ) هغـه ښـځه چې پـوزه ئـې پلنه وي

**خړيتے**:- (خ+ړِي+تے ) (اَف:پ (قـاموس) اِس ص مـذ) هغـه سـړے چې پـوزه ئـې پلنه وي، پلن پوزے، خړيت پوزے

**خړيتېدل**:- (خ+ړِي+تې+د+ل ) (اَف:پ (قـاموس) مـص لا) (۱)پلنېـدل (۲)زړېـدل، ورستېدل (۳)بوډا کېدل، عمر خوړلې کېدل

**خړيتېدنګ**:- (خ+ړي+تې+دَ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص ) و - خړيتېدنه

**خړيتېدنـه**:- (خ+ړِي+تې+د+نـه ) (اَف:پ (قـاموس) حمـص) (۱)خړيتېـدنګ، خړيتېدۀ، پلنېدنه (۲)زړېدنه، ورستېدنه (۳)بُوډا کېدنه

**خړيتېـدُونکـے** :- (خ+ړي+تـي+دُو+ن+کے ) (اَف:پ (قـاموس) مـف مـذ وا ج: کړيتېـدوُنکي (مـؤ: خړيتېـدُونکې ) (۱)پلنېـدُونکے (۲)زړېـدُونکے، ورستېدوُنکے (۳)بُوډا کېدوُنکے

**خړيتېدۀ**:- (خ+ړي+تي+ده ) (اَف:پ (قاموس) حمص ) و - خړيتېدنه

**خـړيج**:- (خ+ړ،ي+چ) (اَف:پ (قـاموس) اِس مز وا ج: خړيجُونـه) حـوض، تـالاؤ، ډنډ

**خـړيچ**:- (خ+ړِي+چ ) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ (مـؤ وا: خړيچـه ج: خړيچـي ) خرميچ، چيختاړ، چخنې، تر پښو لاندې مړلے

**خړيدل**:- (خ+ړے+د+ل) (پ مص لا) (۱)خړ کيدل، خـاکي کيـدل (۲)پـه خـاور خېرنېدل (۳)شرمېدل، شرمنده کېدل

**مزه خړېدل**:- اِص د څۀ څيز بېخونده کيدل، د څۀ کار د کېدو اميد نۀ پاتې کيدل

**خړېدل**:- (خ+ړي+د+ل) (اَف:پ (قاموس) مص لا) د بزي يا ګډې د لېوۀ يا سپي د لاسه په خاورو کښې لوغړېدل

**خړېدلے**:- (خ+ړي+دَ+لے) (اَف:پ (قاموس) مف مز وا ج: خړېدلي (مؤ: خړېدلې) په خاورو ختو کښې لُوغړېدلې

**خړېدنه**:- (خ+ړي+د+نه) (پ حمص) په خاورو ختو کښې لُوغړېدنه

**خړېدُونکے**:- (خ+ړېدُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خړېدُونکي (مؤ: خړېدونکې) په کاورو ختو ککې لُوغړېدُونکے

**خړيس**:- (خ+ړي+س) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ (مؤ وا: خړيسه ج: خړيسي) (۱)خړيسن، بے ډوله غټ سړے، ځورب ناراسته سړے (۲)بے شرم

**خړيس توب**:- (خړيس+تو+ب) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)خړيستيا، خړيسوالے، ناراستے، ځورب والے، بې ډوله غټ والے (۲) بې شرمے

**خړيستيا**:- (خړيس+ت+يا) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) و - خړيس توب

**خړيسن**:- (خ+ړي+س+ن) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) و - خړيسن

**خړيسوالے**:- (خړيس+وا+لے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) و - خړيسن توب

**خړيمار**:- (خ+ړي+ما+ر) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خړيماران (مؤ وا: خړيماره: خړيماراني) (۱)ګېډور، خېټو، ډېر خوارکي (۲)پُوار، ګنده، بے ډوله

**خړيمار کېدل**:- (اَف) اِص (۱)ګېډور او خېټو کېدل (۲)بے ډوله او پوار کېدل

**خړين**:- (خُ+ړي+ن) (پ)راوړتيي) ص مذ (مؤ وا: خړينه: خړينې)(۱)خړين، پوست، نرم، ډېر پوخ، ګليا (۲)قهرېدلې، سوکت په غصه (۳)ورست پرهر، د وينو زوونه ډک پرهر

**خُړين توب**:- (خُړين+تو+ب) (پ اِس مذ) خړين والے پوست والے پوخ والےورستوالې

**خُړين والے**:- (خُړ+ن+وا+لے) (پ اِس مذ) و -خُړين توب

**خُړينول**:- (خُ+ړي+نَ+و+ل) (پ مص مت) (۱)خوړينول، نرمول، پستول، ډېر پخول، وروتول (۲)قهرول، غصه کول، سوختول

**خُړينونه**:- (خُ+ړي+نَ+و+نه) (پ حمص) (۱)خوړينونه، نرمونه، پستونه، ګليا کونه (۲)قهرونه، سُوختونه، غصّه کونه

**خړينووُنکے**:- (خُ+ړي+نَ+وُو+ن+کے) (پ فاع مذ وا ج: خُړينووُنکي (مؤ خړينووُنکې) (۱)خوړينووُنکے، نرمووُنکے، پستووُنکے، ګليا کووُنکے (۲)غصّه کووُنکے، قهرووُنکے، سوختووُنکے

**خُړينېدل**:- (خُ+ړي+نې+د+ل) (پ مص لا) (۱)خوړينېدل، نرمېدل، پستېدل، ګليا کېدل (۲)قهرېدل، سوختېدل، غصّه کېدل

**خُړينېدنه**:- (خُ+ړي+نې+د+نه) (پ حمص) (۱)خوړينېدنه، نرمېدنه، پستېدنه، ګليا کېدنه (۲)قهرېدنه، سوختېدنه (۳)د پرهر وينو زوو نه ډکېدنه

**خُړينېدُونکے**:- (خُ+ړي+نې+دُو+نکے) (پ مف مذ وا ج: خړينېدُونکي (مؤ: خړينېدُونکې) (۱)خوړينېدُونکے، نرمېدُونکے، پستېدُونکے ـ ګليا کېدُونکے (۲)قهرېدُونکے، سوختېدُونکے

**خَزان**:- (خَ+زا+ن) (فا اِس مذ وا ج: خزانُونه) (۱)منې، هغه موسم چې د اونو پاڼے په کښې اور ژېړي

د خزان په باد مې زړۀ په زمين پرېوت
الهي کـــرم! مسبب الاســبــاب (علي خان)

(۲)زوال، بے رونقي

**الوتل**:-اِص خزان راتلل، د خزان باد شروع کېدل

بڼۀ رنګ ئې بد رنګ کا چې پرې و الوځې بې وخته
زړۀ د خـزان ګـــوره پـــه بهـار نۀ زهيرېږي (فاضل)

**خزان پرېوتل**:-اِص خزان راتلل، خزان لګيدل

په جهان چې ستا د حسن کاروان پرېوت
له هيبته په ګلـونـو خـزان پـرېـوت (عبد العظيم)

**راتلل**:-اِص لُغ: د پسرلي وتل، د منې د موسم راتلل ، اِص: ښۀ ښائسته نۀ پاتې کېدل، زوال راتلل

**لګېدل**:-اِص و - خزان پرېوتل

څۀ عجب باغ وو د سرو ګلو پرې خزان وُلګېد
بلبلې لاړې په ژړا ګـډ پـــرې سوارن وُلګېد (ميان عبدالکريم)

**خزانچي**:- (خَ+زا+ن+چي) (فا اِس مذ وا ج: خزانچيان) په خزانه کښې د روپو ذمه وار، خزانه ساتوُنکے، خزانه دار

يو فقير ئې خزانچې دے
هم بے شانه لوے ولي دے (خوشحال بابا)

**خزانه**:- (خَ+زا+نَه) (فا اِس مؤ وا ج: خزاني) (۱)هغه ځاے چې په کښې روپۍ پيسې او سرۀ زر سپين زر ساتلې شي، روپۍ، مال دولت،بينک

تکل ئې خزانه دے پرې غني وو
نـۀ وو بې له ښۀ جامولا ښۀ فرس (علي خان)

(۲)ذخيره هغه ځاے چې په کښې اوبۀ جمع ساتلې شي (۳)هغه ځاے چې په کښې د ټوپکو تماچو او د توپو دارو سکه او کارتوسونه ساتلې شي (٤)هغه ځاے چې غله په کښې جمع ساتلې شي، خمبه، ګودام

**خزانه دار**:- (خزانه +دا+ر) (فا اِس ص مذ وا) و - خزانچي

**خزدکه**:- (خ+ز+د+کـه) (اَف:پ (قاموس) اِس مـؤ وا ج: خزدکـي) يـو قسـم ګونګټې

**خزرے**:- (خ+ز+رے) (اَف:پ (قاموس) اِس مو وا ج: خزري) (۱)ډېر لړ، پُوټے، پوټسکے (۲)د روټئې ذره، خځوسکے

**خزله/خځله**:- (خ+ز+لـه) (پ اِس مؤ وا ج: خزني) (۱)خاشاک، خشاک، خلې (۲)ګډ وډ پروت سامان

**خزله**:- (خَ+ز+لَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ و ج: خَزلي) يو قسم سُور ځيرېوټے چې جامې پرې وينځلے شي

**خزمکے**:- (خَ+ز+مَ+کے) (پ (ب،خ) اِس مذ وا ج: خزمکي)و - خار

**خَزمه**: (خَ+ز+مَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ وا ج: خزمې)خزه، د ښکار پسونے، څو

**خزوکه**:(خ+زُو+کَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ وا ج: خزُوکي) د غوشيانو چينجے

**خزه**:- (خ+زَه) (پ (شين) اِس مؤ وا ج: خزي) (۱)د ښکاري پسونے، څو، خزمه په ښکار د چا دي د پښتنو دي

نورئې څۀ مه ګڼه لکه خزې دي (خوشحال بابا)

(۲)پياله، کاسه

**خزيزکے**:- (خ+زي+ز+کي) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خزيزکي) لونګ، پزغمے پپ (ګن) د سرو يا سپينو زور هغه چې ښځې ئې د چارګل په طور په پوزه کښې اچوي، ميخکے

**خږ**:- (خ+ژ يا خ+ګ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)د ګډے بزے د حلالولو وخت اواز (۲)د پرهر پترکے، پرچرخے، خيږ

**کول**:- کول:-اِص (۱)د ګډے يا بزے د جلالولو په وخت اواز کول (۲)د پرهر پترکے نيول

**خُږ**:- (خُ+ژ يا خُ+ګ) (پ ص مذ وا (مؤ وا: خږه ج: خُږي) (۱)خُوږ، پرهرژلے، زخمې، ژوبل (۲)رنځور، ناروغه، بيمار (۳)رنځ، بيماري، ناروغتيا،

درد، پرهر (٤)ګڼ، موتازه

**خرکے**:- (خرِ+کے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) د ناروغه یا رنځور سړي د سینې اواز، د ناستې سینې اواز

**خړمن**:- (خُرِ+مَ+ن) (پ ص مذ (مؤ وا: خُړمنه ج: خُړمنې) (۱)دړد من رنځور، بیامر، پرهرژلي، ژوبل (۲)ګڼ، موتازه

**خُړوالے**:- (خُرِ+وا+لے) (پ اِس مذ) رنځورتیا، بیماري، درد، ناقلاري

**خُـړول**:- (خُ+ژ یا ګ+و+ل) (پ مـص مـت) (۱) دَرِدول، تکلیف ورسـول (۲)زخمي کول، پرهر په کښې کول، ژوبل کول

**خُړونه**:- (خُ+ژ یا ګ+و+نه) (پ حمص) (۱)زخمي کونه، (۲) ژوبل کونه

**خُړوُونکے**:- (خُ+ژَ یا ګ+وُ+ن+کے) (پ اِس فاع مذ وا ج: خُـړووُنکي: (مؤ:خُړووُنکې) (۱)درِدووُنکے، تکلیف رسووُنکے، خُړوونے (۲)زخمي کووُنکے، ژوبل کووُنکے

**خُړووُنې**:- (خُ+ژَ یا ګ+وُ+نې) (پ اِس فاع مذ وا ج: خُړوونې (مؤ:خُړوونې)و - خُړووُنکے

**خړهار**:- (خ+ژ+یاخ+ګ+ها+ر) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) د رنځور او ناجوړه مړې د سینې په یو مخ اواز

**خړېدل**:- (خُ+ژي یا ګي+د+ل) (پ مص لا) (۱)دړدېدل، تکلیف ورسېدل (۲)زخمي کېدل، پرهر په کښې کېدل، ژوبل کېدل

**خُوېدنه**:- (خُ+ژي یا ګ+د+نه) (پ حمص) (۱)درِدېدنه، تکلیف رسېدنه (۲)زخمي کېدنه، ژوبل کېدنه، پرهر کېدنه، خُړېدۀ

**خړېدوُنکے**:- (خُ+ژي یا ګي+دُو+ن+کي) پ مف مذ وا ج: خړېدوُنکي (مؤ: خُړېدوُنکې) (۱)دړدېدُونکے، تکلیف رسېدوُنکے (۲)زخمي کېدوُنکے، ژوبل کېدوُنکے

**خُړېدۀ**:- (خُ+ژي یا ګي+دۀ) (پ حمص) و - خُړېدنه

**خَس**:- (خَ+س) (فا اِس مذ) (۱)خښے، ذره (۲)بې فائدې غنې بوټے، خشاک، خزله، خلے (۳)وچ وابۀ

صبورې کانـدي سـرے آتش نفس
بدخواهان ئې شي د اور په لمبه خس (حمید)

(٤)بې فائدې څیز، معمولي څیز

ګله نور عیب دے نشته عیب دے دا دے
چې په واز و سترګـو ګوري وهر خس تـه (خوشحال بابا)

**خَس**:- (خَ+س) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)پربوان (۲) غوبنه (۳) خشاک

**خسا**:- (خ+سا) (پ (راوړتې) ص) سخا، خراب، وروست، بدبویه، بد شکله، بد رنګه

**ـــ کول**:-اص سخا کول، ورستول، خرابول، بدبویه کول

**ـــ کېدل**:- اص سخا کېدل، ورستېدل، خرابېدل، بد بویه کېدل

پرې د صبر پهې بِردم واړه خس کېږي
چې په زړۀ باندے داغ دے ستا له خا

**خساوالے**:- (خسا+وا+ لے) (پ اِس مذ) سخا والے، وروستوالے، بدبوي، بد شکلے، بد رنګے

**خساره**:- (خَ+سا+رَه) (ع اِس مؤ وا ج: خساري) تاوان، نقصان، زیان، تروټه، کمے

**پورته کول**:-اص تاوان کښې راتلل، نقصان کول، تروټه کول

**ښئیل**:- اِص تاوان کښې راتلل، نقصان ظاهرول، تروټه ښودل

**ورکول**:-اِص نقصان ورکول، تاوان کښې راوستل، تروټه ورکول

**خساست**:- (خَ+سا+سَ+ت) (ع اِس مؤ) (۱)شومتیا، شو توب (۲)کمینه توب، رذالت، سپکوالے

یـــو د رود ه غـــاړه تشنـــه لب مـــري
هر خسیس په خاست کښې خپل عادت کا (خوشحال بابا)

**ـــ کول**:-اص (۱)شومتیا کول (۲)کمینه توب کول

**خَسبُون**:- (خَ+س+بُو+ن) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خسبانۀ) خسبه، هغه سرے چې د ځنګل یا ګړه نه خشاک راوړي

**خَسبُوتتوب**:- (خسبُون+تو+ب) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) خسبه توب د ځنګل یا غرۀ نه د خشاک راوړلو کار

**خَسبه**:- (خَ+س+بَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) و - خَسبون

**خسبه توب**:- (خسبه+تو+ب) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) و - خَسبُوتتوب

**خسته**:- (خَس+تَه) (فا اِس مؤ) د بادامو یا خُرماَ نیو ګیچۍ یا چکۍ

**خسته**:- (خَ+س+تَه) (فا ص) (۱)بد حال، پریشان (۲)غریب، مفلس (۳)بسمے بسمے، خوړین (٤)خفه، زهیر (٦)زخمي، ژوبل

**ـــ حال**:-اص (۱)بد حال، خوار زار (۲)پریشان،

**ـــ خاطر**: و —خستۀ حال

د خسته خاطر شګاف به مې پیوند شي
کـــه یـــو څو خبري وکړے واشګاف (علي خان)

**ـــ مزاج**:- اص ،کمزورے، بیمار، چه طبعیت ئې نا سازه او ګډ وډ وي

**خستکے**:- (خ+س+تِ+کے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)ختیوسکے، خرک (۲) یوخړ رنګے چینجے

**خَس خس**:- (خَ+س+خَ+س) (پ، اِس ص مذ) ذرې، ټکړې ټکړې

**ـــ کول**:-اص ذرې ذرې کول، ټکړې ټکړې کول

**ـــ کېدل**:-اص ذرې ذرې کېدل، ټکړې ټکړې کېدل

**خُسر**:- (خُ+س+ر) (فا اِس مذ وا ج: خسران) سخر، د ښځې پلار، یا د خاوند پلار

**خسرکے**:- (خ+س+ر+کے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خسرکي) خځوځکے، د روټۍ وغېره ذره

**خَسره**:- (خَ+س+رَه) (اُردو اِس مؤ)(۱)د ماشومانو یو وبائي مرض شرے (۲)د کلي د زمکو او پټو فهرست چې په کښې د هر نمبر د وراندې د زمکې قسم، ملکیت، د زمیدار او کاشتکار نوم، د زمکې رقبه او د فصل او جنس تفصیل درج وي

**خسـړے**:- (خ+س+ړے) (پ اِس مـذ وا ج: خسـړي) (۱)خسـڼے، تـیلے، خلـے (۲)پوټسکے، ډېر ورکوټے کم قیمته څیز (۳) خشاک

**اچول**:-اص خسڼے اچول، پچه اچول، اسک اچول یسک اچول

**خسړې باندے کښېښودل**:- اص

مـــا پــــه ډېرو ستو اور دې لګولے
په دا څۀ که څو خسړې باندې کېږدے (خوشحال بابا)

**خســک**:- (خ+س+َک) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ) (۱)خاشـه، د ماشـومانو د خېټې یو رنځ (۲) کم اصل، کمینه

**خَسک**:- (خَ+س+ک) (فا اِس مذ) خلے، خَل پل، نرے خشاک غنې منې

**خسکه**:- (خَ+س+کَه) (پ اِس مؤ وا) په دېوال کښې چې دړه پرېښودے شي

**خسکه**:- (خ+س+کَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ وا ج: خسکي) ګونګټه

**خسـکے** :- (خ+س+کـے) (پ (سـو) اِس مـذ وا ج: خَسـکي) خځـوزے، د ډوډۍ ورکوټې ټکړه

**خسمان**:- پ(خ+س+ما+ن) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا) (۱) خسنےکے، خړرنګے ګونګټ (۲)سپک سړے، بې عزته سړے (۳)ضامن، ضمانت کووُنکے، ذمه وار

**خَسمان لیک**:- (خَسمان+لي+ک) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) ضمانت نامه

**خَسمانه**:- (خَ+س+ما+نَه) (پ اس مؤ) (۱)پالنه، حفاظت، مدت، غم خوري (۲)ضمانت (۳) د زخم یا پرهر خېږ کوشیرېدنه

**کول**:-اس (۱)پالنه کول، حفاظت کول، مدت کول، غم خوري کول (۲) ضمانت کول

**کېدل**:-اس (۱) پالنه کېدل، حفاظت کېدل، مدت کېدل، غم خوري کېدل (۲)ضمانت کېدل (۳) د پرهر خېږ نیول، کوشیرېدل

**خَسمانه توب**:- (خسمانه+تو+ب) (پ اس مذ) د پالنې خدمت، د پرورش او روزنېکار، غم خواري

**کول**:-اص ، پالنه کول، روزنه کول، غم خواري کول

**خَسمانه گر** (خَسمانه+گ+ر) (پ اس ص مذ (مؤ وا: خسمانه گره ج: خسمانه گري) خسمانه ول، پالنه کوونکے، روزنه کوونکے، غم خور پالونکے

**خسمانه وال**:- (خَسمانه+وا+ل) (پ اس ص مذ (مؤ وا: خسمانه واله ج: خسمانه والي) و -خسمانه گر

**خسنړکے**:- (خ+س+ن+ړ+کے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) (۱)د ماشومانو یوه لوبه (۲) خسمان، خړگونگټ

**خسنړے**:- (خ+س+ن+ړے) (پ اس مذ) (۱)تیلے، خلے، خس

ببرې دې د سینې پـــه زور چې پـــاســـه تلـــه په غرونو

غوټه خوري په کښې گرځي اوس خسنړے د دریاب شوي (خوشحال)

(۲)اَسک، پچه، یسک

**اچول**:-اص ، اسک اچول، پچه اچول، یسک اچول

**خسنړے ختل**:-اص ، اسک راوتل، پچه راوتل

**را ایستل**:-اص ، اسک را ایستل، پچه را ایستل

**خسنړے**:- (خ+س+نړے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ وا ج: خسنړي) ډېرے، ډېران

**خَسُوزه/خځوزه**:- (خَ+سُو+زه) (پ اس مؤ وا ج: خسوزي) (۱)خځوځکے، د ډوډۍ ذره (۲)ډېر ورکوټې څیز، ډېر کم څیز

**خسي**:- (خ+سي) (پ اس) (۱)خصي، هغه ځناور چې خوټې ترې نه ایستې شوې وي، ټکېدلے (۲)نامرد، ایجړا، بېکاره

**کول**:-اص ، (۱)خصي کول، ځناور نه خوټې ایستل یا ټکول (۲) بې کاره کول، نامرد کول

**کېدل**:اص ، (۱)خصي کېدل، د ځناور نه خوټې ایستلے کېدل یا ټکېدل (۲)نامرد کېدل، بې کاره کېدل

**خوۀ خسیان کول**:- مح ، بې فائدې او عبث کار کول

**خُسے**:- (خُ+سے) (پ اس مذ) خوسے، خوشے، بې کاره، فضول، بې ښې بې توښې، عبث

**خسے**:- (خ+سَے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) (۱)یو قسم غرئیز بُوټے (۲) خبنساوه، للون، گوډ

**خسے**:- (خ+سَے) (پ اس مذ وا ج: خسي) (۱)سخے، د غوا بچوړے

خسې ورغومې په کښې کوېتے

خاورې سورے درست انگڼ

(۲)د پښتنو زلمو یوه لوبه

**خسي توب**:- (خ+سي+تو+ب) (پ اس مذ) (۱)خصي توب (۲) نامردوالے، کمزوري

**خسیس**:- (خَ+سي+س) (ع ص) (۱)شُوم، سپېرۀ (۲) رذیل، کمینه

**خسیل**:- (خ+سي+ل) (پ اس مذ) خوید، خېد ،شنه گیا

**خشابي**:- (خ+شا+بي) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ ج) گوسائې، خشوي، غوشۍ

**خشاک**: (خَ+شا+کَ) (پ اس مذ وا ج: خشاکُونه) خاشاک، خس، خلي، تیلي

**خُشاوزه**:- (خُ+شاو+زَه) (پَ (راورټي) اس مؤ وا ج: خشاوزي) سخاوره د بنوشے وبخ، یا جرړه

**خُشت/خوشت**:- (خُ+ش+ت) (پ ص مذ وا ج: خشتۀ (مؤ وا : خشته ج: خشتي) خشت، په اوبو کښې لوند

**پُشت**: اص ، خشت پشت، ډېر لُوند

**خشتکے**:- (خ+ش+ت+کې) (پ (ص) اس مذ وا ج: خشتکي) خښتگې یوه وړه دربگوټه د کپړې ټوټه په د قمیص په ترخ کښې د مظبوطوالي د پاره گنډله شي

**خُشتول**:- (خُ+ش+ت+و+ل) (پ مص مت) خشتول، په اُوبو کښې لوندول

**خُشتونه**:- (خُ+ش+ت+و+نه) (پ حمص) خشتونه، په اوبو کښې لوندونه

**خُشتوونکے**:- (خ+ش+ت+وُو+ن+کے) (پ اس فاع مذ وا ج: خُشتوونکي (مؤ: خشتوونکي) خشتوونکے، په اوبو کښې لُوندوونکے

**خُشتېدل**:- (خُ+ش+تې+د+ل) (پ مص لا) خشتېدل، په اوبو کښې لوندېدل

**خُشتېدنه**:- (خُ+ش+تې+د+نه) (پ حمص) خشتېدنه په اوبو کښې لوندېدنه

**خُشتېدونکے**:- (خُ+ش+تې+دُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خشتېدونکي (مؤ : خشتېدونکي) خشتېدونکے، په اوبو کښې لوندېدونکے

**خشخاش**:- (خَ+ش+خا+ش) (فا اس مذ) (۱)خاشخاش، خشخش، قاشقاش د پوست یا د ډوډے تخم (۲)ذره د ډېر معلولي وزن څیز

هزار زړونه ئې هزاره غُنډے پاره کړۀ

مرهم نۀ ږدي پرې په وزن د خشخاش (علي خان)

**خُشک**:- (خُ+ش+ک) (فا ص مذ (مؤ: خشکه) (۱)وُچ، شنډ، کلک (۲)بې اوبو، بې نم، سپور (۳)بدخویه هغه څوک چې بل ترے څۀ فائده نۀ شي احستے ، بې مغز، ناپوهه

**ـــــ دماغ**:-اص

**خشک مغز**، خشکې، لېون غرے، هغه څوک چې په معمولي خبره ډېر زر خفه کېږي یا غصه کېږي، تُند خو، گرم مزاج، بد خویه

**خشک مغز**:-اص ، و -خُشک دماغ

**خشکاوه**:- (خُ+ش+کا+وَه) (پ (راورټي) اس ص مؤ) (۱)وچ کال، سوکړه اوچوبے قحط (۲) اوچه مېره، خشک میدن

**خُشک دماغي**:- (خُشک+دې+ما+غي) (فا اس ص: مؤ) خشکي توب، لېو نغرې، تند خوئ

**خُشک سالي**:- (خشک+سا+لي) (فا اس ص مؤ وا) اوچ کال، اوچوبے، سوکړه، خُشکاوه، هغه موسم چې په کښې د نور کله په شا ن بارانُونه ونۀ شي

**خُشکه**:- (خُ+ش+کَه) (فا اس مؤ) (۱)ساده پیکه یشېدلے وریژے (۲)خُشکې وچه مزکه، د ترې ضد (۳)سیاهي چوس

**خُشکي**:- (خُ+ش+کي) (فا اس وا ج: خشکیاني) (۱)وچه مزکه، وُچه مېره (۲) سختي، تند خوئ (۳)سپور والے

**خشکې**:- (خَ+ش+کَے) (پ (سو) اس مؤ) اُوړده پسکۍ چې په نري اواز ئې خلق پوهه شي

**خَشم**:- (خَ+ش+م) (فا اس مذ) (۱)قهر، غصّه، سوخت، خفگان (۲) گرمي

**خشمناک**:- (خَ+ش+م+نا+ک) (فا اس ص مذ (مؤ وا : خشمناکه ج: خشمناکي) قهرجن، غصّه ناک، د سوخت نه ډک

هغه یار که خشمناک دے زۀ پرې خوښ یم

لاساده محتاج الیـــه وي تنــد لاښـــه ئې (علي خان)

**خَشنه**:- (خَ+ش+ن+ړه) (اَف:پ (قاموس) اس ج)خرشینه، د اَس یا د خر فضله، لَد (گن)

**خشنک**:- (خَ+ش+ن+ک) (اَف:پ (قاموس) اس مذ (مؤ وا خشنگه ج: خشنگي)

شوخ، سرکش، ترهېدونکے

**خشنگتوب**:- (خشنگ+تو+ب) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) کژنګي، شوخي، سرکشي

**خشنګي**:- (خ+ش+ن+ګي) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) و - خشنګتوب

**خشنور**:- (خ+ش+نُو+ر) (فا: خوشنور پ (راورټي) ص) خوشحال، اسوده، مور، پټ، راضي خوښ

**خُشنودي**:- (خُ+ش+نُو+دېي) (فا پ (راورټي) اِس مؤ) خوشحالي، اَسودګي، صبر، رضا، خؤښي

**خُشوع**:- (خُ+شُو+ع) (ع اِس مذ) عاجزي، انکساري، ځان سپک ګڼل

**خشوي**:- (خ+شُو+ئ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خشائئ) غوشائ، خشوے، غشوے

**خشوے**:- (خ+شو+ے) (پ (ظفر) اس مذ وا ج: خشایه) و - خشوي

**خُشے**: (خُ+شَې) (پ ص مذ وا ج: خشي (مؤ: خشيئ) (۱)خوشے یله، بېکاره، عبث، (۲) لېونے، سودائي، بې خوده، بې پروا (۳)غبر آباد، خالي، سپېرۀ، شار

**خَشیانه**:- (خَ+ش+یا+ن+ه) (پ اِس مؤ وا ج: خشیانې) د خرۀ یا اس لید یاسره

**خُشئي**:- (خُ+ش+یېئ) (پ اِس ج) هغه ټول سامان چې د وادۀ نه وړاندې د زلمي د کوره د ناوے کره ور وړلے شي، دا په ځنے علاقو کښې د وادۀ یو رسم دے

**خښ**:- (خَ+ش+یا خ) (پ ص مذ (مؤ وا: خښه ج: خښې) شخ، دفن

**کول**:-اص ښخول

**کېدل**:-اص ښخېدل

**خښتک**:- (خ+ش+یا خ+خ+ت+ک) (پ اِس مذ وا ج: خښتکُونه) د پرتوګ میانئ یا د مېنځ حصّه

کـه دواړو پښتون راته تسلیم دے

زۀ خو بیا د سباکئ انا خښتک یم (خوشحال بابا)

**ښېرل**:- (اَف) اص، بد کاري کول، بې شرمي کول

**لمدېدل**:-اص (۱)متیازے تلل، (۲) پرېدل (۳) غسل فرض کېدل

**خښتکے**:- (خ+ش+یا خ+خ+ت+کَې) (پ اِس مذ وا ج: خښتکي) و- خشتکے

**خښتوب**:- (خَښ+تو+ب) (پ اِس مذ) خښوالے، ښخوالے

**خښته**:- (خ+ش+یاخ+خ+ته) (پ فا: خشت اِس مؤ وا ج: خښتي)خشته، ایټه

چې ئې خوب په پالنګ نۀوو بې د پرولـه بالښته

ورته ګوره نن داره کړه تر سر لاندې اومـه خښته (خوشحال بابا)

**خښوالے**:- (خَ+ش+یا+خَ+خ +و+الے) (پ اِس مذ) و - خَښتوب

**خښول**:- (خ+ش یا خ+خ+و+ل) (پ مص مت) (۱)ښخول، په مزکه کښې دننه کول، دفن کول (۲)ځۀ خبره هېرول

**خښولے**:- (خ+ش+یاخ+خ+وَ+ لے) (پ مف مذ وا ج: خښولي (مؤ: خښولې) ښخولے

**خښونه**:- (خ+ش+یاخ+خ+و+نه) (پ حمص) (۱)ښخونه، په مزکه کښې دننه کونه، دفن کونه (۲) ځۀ خبره هیرونه

**خښوونکے**:- (خ+ش+یاخ+خ+وُو+ن+کے) (پ فا مذ وا ج: خښوُونکي (مؤ: خښوونکې) (۱)ښخوُونکے، په مزکه کښې دننه کوونکے، دفن کوونکے، (۲) ځۀ خبره هېرووُنکے

**خښے**:- (خ+خے) (پ اِس مذ) (۱)د پټهنو د یوسف زي قبیلې د یو مشرنبکۀ نوم (۲)د یوسفزو قبیله

**خښے**:- (خ+شے یا خے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خښې) تغر، کښاکئ، ټاټ، لمسے

**خښېدل**:- (خ+شې یا خ+خې+د+ل) (پ مص لا) ښخېدل، دفن کېدل

**خښېدنه**:- (خ+شې یا خ+خې د+نه) (پ حمص) ښخېدنه، دفن کېدنه

**خښېدُونکے**:- (خ+شې یا خ+خې +دُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خښېدُونکي (مؤ: خښېدونکې) ښخېدُونکے، دفن کېدُونکے

**خصلت**:- (خَ+ص+ل+ت) (ع اِس مذ وا ج: خصلتُونه) (۱)عادت، خوئ

لباسیانو ئې تـالاد حُسن باغ کړو

له مخلص سره خصلت که د وفا شاذ (علي خان)

(۲)خاصیت، تاثیر (۳) طبیعت، مزاج

**خُصوصاً**:- (خُ+صُو+صاً) (ع تابع فعل) په تاکید، په خاص طور، خاص طور سره، په ګتنه کړے شوے، ځان ته

**خصوصیت**:- (خُ+صُو+صي+يَ+ت) (ع ص) خاص والے، خاص صفت، خاصه خبره، خاص کېدۀ

**خضاب**:- (خِ+ضا+ب) (ع اِس مذ وا ج: خضابُونه) وسمه، د سپین وېښتو د تورولو دارو یا رنګ، د نکریزو اُره کړې پاڼې چې په وېښتو ئې پورې کوي

بـل هغه سـړے احمق بللے بویه

چې وېښته به تور وي په خضابونو (خوشحال بابا)

**ـــ پورې کول**:-اص خضاب لګو، سپین وېښتۀ، په خضاب یا په دارو تورول، وېښتو ته رنګ ورکول، وسمه لګول

**ـــ لګول**:-اص و –خضاب پورې کول

**خِضـر**:- (خِ+ضَ+ر) (ع اِس مـذ) (۱)د مسلمانانو د عقیدے په مطابق یو پیغمبر چې آبا حیات ئې څښلي دي او تر قیامت به ژوندے وُسي او هغه کسانو ته لار ښائي چې لار ترې نه خطا شوې وي

که د خضر په چشمه باندې مې کور شي

د فـراق انــدوه بـه هورته ما هلاک کا (خوشحال)

(۲)لاره ښیوُنکے، رهنما، رهبر

رهبري ـکه ګمرهانو ته کړي خضر

عاشقانو لره خضر ستا ریبار دے (رحمن بابا)

**موندل**:-اص (۱)د خضر علیه السلام د چا سره ملاوېدل (۲)وسیله موندل، نۀ کېدونکے کار کېدل

**خضـوع**:- (خُ+ضُو+ع) (ع اِس مـذ) عـاجزي او منت زاري، د زړۀ د ژړانـه ډکـه زاري (دالفظ اکثر د خشوع سره یو ځاے استعمالېږي

**خشوع خضوع کول**:-اص الله تعالي د وړاندې د زړۀ نه عاجزي او زاري کول، په کامله تونه بندګي کول

**خط**:- (خَ+ط) (ع اِس مذ و ج: خطونه) (۱)چیټئ، لیکلے کاغذ

معطر له خوددشبوئي اهل مجلس شو

چې مې واکـړه لفافـه وعنبر بارخط (عبدالقادرخان)

(۲)کرښه، نخښه، لیکه (۳) لیک، تحریر (٤)نوي رېره برېت چې د هلک په مخ ځرګند شي

چې سرې شونډې سبز خط ئې راپه زړۀ شي

سر تـر پـایـه سره لښه شـم شنه ډوزه (علي خان)

**ـــ جوړول**:-اص حجامت جوړول، سرسنت جوړول یا سمول

**ـــ راتلل**:-اص (۱)د چا د طرف نه خط راتلل، لیک یا چیټئ راتلل

لاســـونـه مې ریبړي او درزېږي مې زړګے

راغلې مې یو خط دے د دلبر چې ځۀ به وي (شمس الزمان خټک)

(۲)د اولې ځوانئ د رېږي وېښتۀ ښکاره کېدل، د ځوانئ رېره راتلل

**ـــ شکسته**:-اص، یو قسم وران اُوجاړ غوندې لیک چې ډېر زر زر لیکلے

شي او په آسان نۀ شي لوستے

ـــ **کښل**:-اِص ، خط لیکل، چیتي لیکل

ـــ **مستقیم**:-اِص ، نېغ خط، سم خط، نېغه کرښه، سمه کرښه

ـــ **مُنحني**:-اِص ، هغه ایرانے خط چې د نسخ او تعلیق دواړو په یو ځاے کولو جوړ کړے شوے دے د ښائسته غنړو دائرو خط فارسي او اردو هم په دے نستعلیق خط کښې لیکلے شي۔(لیک دود پریشان خټک)

ـــ **وهل**:-اِص ، کرښه راکښل

**خَطا**:- (خَ+طَا) (ع اِس مؤ وا ج: خطاګاني) (۱)خطائي، غلطي، جرم، ګناه، قصور

دینداران دے د خپل دین وته نظر کا

څوک فکرونه د ثواب کا څوک خطا (رحمن بابا)

(۲)دختن سره نژدې یو ښهر چې د هغه ځاے نه مُشک راځي

رنګ روم خطا همیش کُل په هیبت شي

رعد آسا په لاس په هند په نېغ رخشان کا (سعید خټک)

(۳)غلط

پښتنې جونــه مې ولیدې په سترګو

څوک چې ترکې د خطا ستائي خطا دی (خوشحال بابا)

ـــ **ایستل**:-اِص ، غلطول، بې لارے کول

ـــ **تلل**:-اِص ، غلطېدل، په غلطه لاړ تلل

د سعید فکر خطا ځي که رسا دے

مجموعه وي دغه کار چې ئې مردان کا

ـــ **کار**:-اِص ، ګناهګار، غلطي کوونکے

ـــ **کول**:-اِص ، (۱)غلطي کول، خطائي کول، ګناه کول، قصور کول (۲)بل څوک بې لارې کول، غلطول، خطا ایستل (۳) په نخښه نۀ لګېدل

ـــ **کېدل**:-اِص ، (۱)قصور کېدل، ګناه کېدل، جُرم ئې د لاس کېدل (۲)غلطېدل، بې اراده څۀ کار کېدل

شمس وَلې پــه هر چا باندې نازېږې

خطا نۀ شې په هېڅا کښې وفا نشته

(۳)په نخښه نۀ لګېدل

**وار**ـــ:-اِص ، هغه څوک چې په خطاوي، قصور وار، مُجرم

**خطاب**:- (خِ+طا+ب) (ع اِس مذ وا ج: خطابُونه)(۱)خبرې اترې، وینا، کلام چا سره په مخامخ خبرې کول (۲) یو تعریفي لقب چې د حاکم، بادشاه یا حکومت د طرف نه چاته ورکړے شي (۳) د طنز یا ټوقې په طور چې په چا څۀ نوم کښېښودے شي

ـــ **کول**:-اِص ، تقریر کول، خطبه لوستل

ـــ **ورکول**:-اِص ، (۱)د حاکم، بادشاه یا حکومت چاته تعریفي لقت ورکول

شمس زه ور بــوه عــاشقي نۀ کړمه

د بادشاهي که څوک خطاب راکوي

(۲)د طنز یا ټوقې په طور په چا څۀ نوم کښېښودل

**خَط استوا**:- (خط+ا+س+ت+وا) (ع اِس مذ ) د زمکې د کُرّے د پاسه یو فرضي خط (کرښه) چې د قطبي او سویلي دواړو قطبونو په مینځو مانه کښې منلے شوے دے دا کرښه په علم هیئت وغېره کښې پکار ېږي دا خط زمکه په دوو برابرو حصّو کښې تقسیموي دا خط د نمر کاتۀ نه تر نمر پریواتــۀ پــورې فــرض کــړے شــوے دے چــې نمــر د دې کرښــې پــه برابرۍ کښې د اسمان مېنځ ته راشي نو ورځ او شپه یو برابر شي

**خطّاط**:- (خَ+طا+ط ) (ع اِس مذ وا ج: خطاطان ) کاتب، خوش نویس ښکلے خط لیکُونکے

**خُطبه**:- (خُ+ط+به ) (ع اِس مؤ وا ج: خطبې ) (وعظ او نصیحت چې خلقو ته د جمعې یا اختر د نمونځ په موقع اورولے شي، تقریر )

ـــ **لوستلې کېدل**:-اِص ، وعظ نصیحت اورولے کېدل، د یو مسلمان بادشاه حکومت منلو نه پس د هغۀ نوم په خطبه کښې داخلېدل

ـــ**وئیل** :-اِص ،د جمعې یا اختر په ورځ وعظ نصیحت کول، تقریر کول

**خطر**:- (خَ+طَ+ر) (ع اِس مذ وا ج: خطرونه) (۱)خطره، ویره، خوف، ډار

په رڼا ئې خلقو زیست کړۀ

نــۀ ځــۀ خوف وو نۀ خطر (رحمن بابا )

(۲)سختي، ګرانه، (۳) اندېښنه

**په خطر کښې اچول**:-اِص ، په خطره یا ویره کښې اچول، په آفت یا مصیبت کښې ګېرول۔

**خطرناک**:- (خَطر+نا+ک) (فا ص مذ (مؤ وا : خطرناکه ج: خطرناکې) خوفناک، یروونکے

**خطره**:- (خَ+ط+رَه ) (ع اِس مؤ وا ج: خطرې) و - خطر

**خط والا**:- (خَط+وا+لا) (پ اِس ص مذ وا )ډاکې، پوستیمن،چیتي رسان

**خِطّه**:- (خِ+ط+طَا ) ( ع اِس مؤ وا ج: خطې) د زمکې یوه حصه یا ټکړه، علاقه ملک

**خَطي**:- (خَ+طي) (ع ص) خط سره تعلق لرونکے، د خط په لیک کښې راغلے، قلمي

**خطیب**:- (خَ+طي +ب) (ع اِس ص مذ وا ج: خطیبان) خطبه لوستونکے، وعظ کوونکے، د جامع مسجد پیش امام

شمس خپله مینه ورته مه ښئیه

مــه کــوه دا ذکر د خطیب سره

**خَفقان**:- (خَ+ف+قا+ن) (ع اِس مذ وا ) (۱)خفګان د زړۀ درزېدل یا درګیدل، یو مرض چې په هغې کښې د زړۀ حرکت تیز شي، زړۀ په زوره زوره او زر زر ټوپونه وهي، (۲)ډېر زیات وهم، وحشت د زړۀ دلګیرتیا

ـــ **کول**:-اِس ، زړۀ دلګیر کول، خفګان کول، زړۀ سوځول

ـــ **کېدل**:-اِص ، (۱)د زړۀ درزېدو مرض کېدل، کفګان کېدل (۲)وهم کېدل،د زړۀ دلګیر کېدل

**خفګان**:- (خَ+ف+ګا+ن) (پ اِس مذ وا ) (۱)خفګي، ناراضګي، غصّه، قهر، سُوخت (۲)دلګیرتیا، وهم

ـــ **کول**:-اِص (۱)قهر کول، غُصّه کول، ناراضه کېدل (۲) وهم کول، دلګیر کېدل

**خفګي**:- (خَ+ف+ګي ) (پ (راورتې) اِس مؤ وا ) ناراضګي، غصّه، قهر، خفګان

**خفه**:- (خَ+فَه ) (فا ص) ناراض، سُوخت، قهرېدلے، بې طبعې، خپه

ـــ **کول**:-اِص ، ناراضه کول، قهرول، سُوختول، خپه کول،

شمس درته زارې کوي چې ښکلو پسې مه ګرځه

ډېــر ډېــر دے خــفــه کــړمــه زمــا زړګیه اومنه

ـــ **کېدل**:-اِص ، ناراضه کېدل، قهرېدل، سُوختېدل، خپل کېدل

**خَفي**: - (خَ+في ) (ع ص) پټ په پرده کښې ډېر باریک یا نرے خط (دجلي ضد)

**خَفیف**:- (خ+في+ف ) (ع ص (مؤ: خفیفه ) (۱)سپک، ذلیل، شرمنده

څوک دے نۀ ګڼي په عشق کښې ما خفیف

پـــه خــیــرن نمرې غــانــدۀ نۀ شي شریف (حمید)

(۲)لږ غوندې، بې قدره، فضول

ـــ **کېدل**:-اِص ،شرمنده کېدل، ذلیل کېدل، سپکېدل، بې قدره کېدل

**خُفیه**:-(خُ+فَ+یَه ) (ع ص) پټ ، په پرده کښې په پټه

ـــ **پولیس**:-اِص، د پولیس هغه محکمه چې د هغې په ذمه په پټه او په پرده

کنبي د یوے معاملے حال احوال معلومول او د هغې رپوټ کول وي
ـــ **خبر**: -اص ، پټ خبر ، د راز خبر
ـــ **نویس**: - اص ، پټ خبر ورکوونکے ، د کارِ خاص سړے مُخبر ، جاسوس
**خکـان**: - (خَ+کـا+ن) (پ (اورک) اس مـذ ج) ډېـر نـري نـري چینجـي چـې د ماشومانو د بولو په ځاے کنبي وي
**خُګ لن**: - (خُ+ګ+ل+ن ) (پ (راوړتي) اس مذ وا ج: خګلنونه) سخوښتن ګرم او تود ایره خول
**خـل**: - (خ+ل) (اَف:پ (قـاموس) اس مـذ ) (۱)یقـین ، بـاور ، اُمیـد ، (۲)خـال (مخفف)

د غوټۍ غوندې موسېږه
د ابرو تر مېنځ خل مه شه (خوشحال بابا)

**کول**: (اَف) اص ، باور کول، یقین کول
**خَل**: - (خَ+ل) (اَف:پ (قاموس) اس مذ ) مړاوے ګُل
**خَلا**: - (خَ+لا) (ع اس مؤ وا ج: کلاګانې) (۱)خالي ځاے ډ ډون، تش والے (۲) د زمکې د پاس هغه ځاے چې په کنبي د زمکې کشش ثقل کار نۀ کوي (۳) هغـه ځـاے چې په کنبي هـوا نۀ وي د زمکې او د آسمان تر مېنځ ځاے
**خلات**: -(خ+لا+ت) (پ ع: خلعت اس مذ وا ج: خلاتُونه) د عزت جامه کم نه کم د دریو جامو تحفه چې د بادشاهانو، امیرانو د طرفـه بـه پـه انعـام کنبي ورکولے شوه
ـــ **اخستل**: -اص ، خلعت اخستل یا موندل جامه جوړه، پوشاک یا څۀ قسم لباس په انعام کنبي موندل
ـــ **ورکول**: -اص ، خلعت بخښل یا ورکول، چاته د عـزت زیـاتولو د پـاره د بادشاه یا د بل لوے سړي د طرفه جامے ورکول
**خلاس یلے**: - (خَ+لا+س+پ+لے) (پ (ظفر) اس مذ ) لاټه بس، املتاس
**خـلاص**: - (خ+لا+ ص) (ص مـذ (مـؤ وا خلاصـه ج: خلاصـي ) (۱)آزاد ، پرېښودلے شوے

کاشکے مړوے له دے تل مرګه به خلاص وم
وژني نـه، مـا کـړوي دا سنګـدلان وریت (علي خان)

(۲)ختم،پُوره
**خلاصـول**: - (خ+لا+ص+و+ل) (پ مـص مـت) (۱)آزادول پرېښـول، رهـا کـول (۲)ختمول، پوره کول (۳) ښځې ته طلاق ورکول
**خلاصونه**: - (خ+لا+ص+و+نه) (پ حمص) (۱)آزادونـه، پرېښـونه (۲)ختمونـه پـوره کونه (۳)ښځې ته طلاق ورکونه
**خلاصـووُنکے**: - (خ+لا+ص+وُو+ن+کے) (پ فـاع مـذ وا ج: خلاصـوونکي (مـؤ: خلاصـووُنکې) (۱)آزادووُنکے، پرېښـوُنکے (۲)ختمـوُونکے پـوره کـوونکے (۳)ښځې ته طلاق ورکووُنکے
**خلاصـه**: - (خ+لا+صـه) (پ اس مـؤ وا ج:خلاصـي ) (۱)آزاده، پرېښـلے شـوے، طلاقه (۲)ختمه، پوره (۳) فېصله
**خلاصه کول**: -اص ، د دوؤ فریقو پـه مېـنځ کنبي څۀ خبره فېصله کول، خبره ختمول
**کېدل**:اص ، فېصله کېدل، خبره ختمېدل
**خُلاصه**: - (خُ + لا + صَه) (ع اس مؤ وا ج: خلاصي) (۱)چوڼ شوے، انډولے شوے (۲) پخوړ، ست، د منځ مطلبي شے یـا حصـه (۳) اختصـار انتخـاب، حاصل مطلب (۴) اصل غرض لنډه خبره، سفا خبره
ـــ **جوړول**: -اص ، د کتاب انتخاب کول ، د کتاب نه مطبلي حصّے رایو ځاے کول
ـــ **داچې**: -اص ، لنډه دا چې غرض دا دے صفا خبره دا ده
ـــ **رااېستل**: -اص ، د کتاب نه خاص د مطلب حصّے را ایستل
ـــ **کول**: -اص ، مختصر کول، انخاب کول، حاصل مطلب بیانول
**خلاصه خوله**: - (خ+لا+صه خُو+له) (پ ص مؤ) چې روژه نۀ وي د رمضـان شـریف نه سپوا نورے ورځے
**خَلاصے**: - (خَ+لا+صے) (پ اس مـذ وا ج: خلاصـیان) (۱)خېمـې، شـامیانې یـا تمبـوان لګـووُنکے نـوکر، (۲) پـه توپخانـه، ریـل یـا جهـازونو کنبـي کـار کووُنکے مزدور
**خلاصے**: - (خ+لا+صَے) (پ اس مذ ) (۱)خلاصېدنه، آزادي، رهائي بچ کېدنه

کـــه پـــه تن شاه جهان د زمانې شي
هم دے نۀ وینم خلاصے د مرګ له تېغ (خوشحال بابا)

(۲)خاتمه، (۳) فېصله
ـــ **کول**: -اص ، (۱)خبره فېصله کول (۲) خبره ختمول (۳) ځان آزادول
ـــ **کېدل**: -اص ، (۱)خبره فېصله کېدل (۲)خبره ختمېدل (۳) ځان آزادېدل، رهائي کېدل
ـــ **موندل**: -اص ، رها کېدل، آزادېدل
ـــ **ورکول**: -اص ،آزادول، رها کول ، پرېښول
**خلاصېدل**: - (خ+لا+صې+د+ل) (پ مص لا) (۱)آزادېدل، پرېښـودلے کېـدل (۲) په آرام کېدل

نـۀ ئې غـم صبر تـه توان شي
نۀ به خلاص تر علي خان شي

(۳) ختمېدل، پوره کېدل، (۴) د کوروالي په وخت د سړي انزال کېدل
**خلاصېدنه**: - (خ+لا+صې+د+نه) (پ حمص)(۱)خلاصېدۀ ازادېدنه، رهـا کېدنـه (۲) ختمېدنه، پوره کېدنه، (۳) انزال کېدنه
**خلاصېدُونکے**: - (خ+لا+صې+دُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خلاصېدوېنکي (مؤ: خلاصېدوُنکې) (۱)آزادېدوُنکے، رها کېدوُنکے، (۲) ختمېدوُنکے پوره کېدوُنکے (۳) انزال کېدوُنکے
**خلاصېدۀ**: - (خ+لا+صې+دۀ) (پ حمص) و- خلاصېدنه
**خـلاف**: - (خِ+لا+ف) (ع ص مـذ) (۱)بـرخلاف ،خـالف (۲) اړولے، اپوټـه، برعکس (۳) ناموافق (۴) دروغ، دښمني ، مخالفت

هم هزار رنګه دروغ خلاف په زړۀ کنبي
هـــم هـزار خله په خولۀ د صدق لاف کا (خوشحال بابا)

ـــ **تلل**: -اص ، (۱)اختلاف کول، اپوټه تلل (۲) مخالف کېدل، مخالفت کول
ـــ **کول**: -اص (۱)مخالفت کول، دښمن کول، برخلاف کول (۲) اوړول
ـــ **کېدل**: -اص (۱)برخلاف کېدل، دښمن کېدل (۲) مخالف کېدل، اختلاف کول، برعکس کېدل (۳) اوړېدل
ـــ **ګڼل**: -اص، د حقیقت برخلاف ګڼل ، دروغ ګڼل، برعکس ګڼل
ـــ **وئیل**: -اص، د حقیقت بر خلاف خبره کول نا موافقه خبره کول، دروغ وئیل
**خلافـت**: - (خِ+لا+فَ+ت) (ع اس مـذ وا ج: خلافتُونـه) (۱)نائـب کېـدۀ، نیابت وراثت (۲) د نبي، ولي، پیر یا بادشاه خلیفه یا جانشین کېدل، د خلیفـه عهده د مسلمانانو بادشاهي
**خلافت کول**: -اص،نیابت کول، جانشیني کول، د مسلمانانو د خلیفـه حکومت کول
**خلافت راشده**: - (خلافت+را+شي+دَه) (ع اس مؤ)د رسول کریم صلي الله علیـه وسـلم نـه روسـتو د حجـرت علـي رضـي الله عنـه تـر شـهادت پـورې د مسلمانانو حکومت۔
**خلاف شرع**: - (خِلاف+شَ+ر+ع) (ع ص)د شریعت بر خلاف، د اسلامي قـانون بر خلاف غېر قانوني

**خلاف طبع**:- (خِلاف+طَ+بَ+ع) (ع ص)د طبعيت يا مزاج خلاف چې زړۀ ئې نۀ مني

**خلاف عقل**:- (خِلاف+عَ+قَ+ل) (ع ص) د عقل نه برخلاف په عقل يا خيال كښې نۀ راتلونكې، د عقل نه لرې، ناممكن

**خلاف قانون**:- (خِلاف+قا+نُو+ن) (ع ص)د قانون برخلاف، بې قانونه، بې اصوله

**خلاف قدرت**:- (خِلاف+قُ+د+رَ+ت) (ع ص) غير طبعي، د قدرت برخلاف د قدرتي اصول بر خلاف

**خلاف قياس**:- (خِلاف+قِ+يا+س) (ع ص)د اندازې بر خلاف، خلاف عقل

**خلاف ورزي**:- (خِلاف+وَ+ر+زي) (فا اِس مؤ) خلاف كول، اصول يا قانون ماتول، خبره نۀ منل، مخالفت

**ــــ كول**:-اِص، خبره نۀ منل، قانون ماتول، مخالفت كول

**ــــ كېدل**:-اِص،خبره نۀ كېدل، مخالفت كېدل، قانون ماتېدل

**خلال**:- (خِ+لا+ل) (ع اِس مذ وا ج: نرے تيلے، غاښ ټومبنے (۲)د دوؤ څيزونو تر مېنځ فرق يا فاصله

**ــــ كول**:-اِص (۱)په نرئ تيلي (غاښ ټُومبني) د غاښونو مېنځ نه د خوراک خڅوګکي رائيستل يا صفا كول (۲) د اودس چار اندام په وخت په ږيره كښې څلور واړه ګُتي لكه د ږمنځ ګرځول په اودس كښې د لاسو او پښو په ګُوتو كښې د بل لاس ګُوتو وهل يا ګرځول

**ــــ كېدل**:-اِص (۱)د خوراک نه پس غاښ ټومبني سره د غاښونو د مېنځ نه خڅوګكي صفا كېدل (۲) د اودس چا راندام په وخت په ږيره كښې ګوتې وهلې كېدل۔

**خلاملا**:- (خَ+لا+م+لا) (پ (راورټې) ص) سپين، صاف، بې ريا، په زړۀ صفا، صفا زړے، بې غرضه، بې وټه۔

**ــــ كول**:-اِص،صفا كول، ښكاره كول، بې غرضه كول

راشه كه ئې ګورې دا په خپل جمال مغروره
څــو رنګه نــازونــه په خوشحال خلا ملا كا

**ــــ كېدل**:-اِص ، صفا كېدل، ښكاره كېدل

**په خلا ملا ويل**:-اِص ، صفا ويل، بې غرضه ويل، ښكاره ويل

**خلائي**:- (خَ+لا+ئي) (فا، ص)چې خلا سره تعلق لري، فضائي، هوائي

**خلائي جهاز**:- (خلائي+جَ+ها+ز) (فاتر اِس مذ وا ج: خلائي جهازُونه) هغه جهاز چې په خلا كښې الوځي، هوائي جهاز

**خَلباندے**:- (خَ+ل+با+ن+دے) (اَف:پ (قاموس) اِس ص مذ) چې يقين پرې كړے شوے وي، چې باور پرې كړے شوے وي

**خُلبورے**:- (خُ+ل+بو+رَے) (پ (ظفر) اِس مذ وا ج: خُلبورې) بُوجه، ډاپ، بورے (ګن) خُلبوټے

**خَلپل**:- (خَ+ل+پَ+ل) (پ (شمن) اِس مذ )خزلہ بُوس، تيلې، خس خشاک، خرپل

**خَلپسكې**:- (خ+ل+پ+سَ+كې) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) په خاور كښې د چرګو لوغړېدنه

**ــــ كول**:-اِص،د چرګو په خاورو كښې لوغړېدل

**خلپوټے**:- (خُ+ل+پُو+ټے) (پ (ب،خ) اِس مذ وا ج: خُلپوټې) و - خُلبورے

**خُلپله**:- (خُ+ل+پَه) (پ (راورټې) اِس مؤ وا ج: خُلپلې)خُرفه، يو قسم ساګ

**خَلتكه**:- (خَ+ل+تَ+كه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ)د شپېشتو يا بېړو يو قسم لوبه

**خلتم**:- (خ+ل+تَ+م) (پ ع: خرطوم اِس مذ )خرتم، د اتې سونډ

**خَلته**:- (خَ+ل+تَه) (پ (ظفر) اِس مؤ وا ج: خلتې) (۱)سرپوښه ټوكرى چې اكثر د غرونو خلق ئې استعمالوي، جلته (۲)د كپړې نه جوړه پنجره چې مرزان په كښې ساتلے شي (۳)د بالښت چاړ، اَبره (٤) خُرجي، وړه كځوړه، خليته

**خلتيمي**:- (خ+ل+تي+مي) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) د زنانؤ د وېښتو كځوړه

**خَلجان**:- (خَ+ل+جا+ن) (ع اِس مذ) فكر، انديښنه، نُول، ويره، د زړۀ غم

**ــــ كول**:- اِص، فكر كول، انديښنه كول، نُول كول، ويره كول، په زړۀ كښې څۀ غم څوخېدل۔

**خلجي**:- (خ+ل+جي) (اُر اِس مذ وا ج: خلجيان وا : مؤ خلجئ ج: خلجيانې) غلزے، د پښتنو د يوې مشهورې قبيلې نوم چې په هندوستان ئې حكومت كړے دے

**خَلځكے**:- (خَ+ل+د+ز+كَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خلځكي) ځرخ لرګے، ځرخنكے

**خلچن**:- (خَ+ل+چ+ن) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ (مؤ: خلچېدنه)خلچے، خيرن، خچن، كړېسن، پُوار

**خلچے**:- (خ+ل + چَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ (مؤ: خلچئ) و ـ خلچن

**خَلخال**:- (خَ+ل+خا+ل) (ع اِس مذ) د زنانؤ د پښو يو كالے، پازېبې پيئنزيبې

**خَلخګے**:- (خَ+ل+خ+ل+ګے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) كچه، كچه لولو، يو قسم لوبه چې په ګوتو كولے شي۔

**خُلد**:- (خُ+ل+د) (ع اِس مذ) لُغ: همېشه پاتے كېدونكے څيز، اِص: جنت، بهشت

**خُلدبرين**:- (خُلد+بَ+رِي+ن) (ع اِص) اعلي جنت، جنت الفردوس، د جنت د ټولو نه اوچته درجه

**خلستر**:- (خ+لَ+س+ت+ر) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) زوړ او شلېدلے، كنځن، زړه او شلېدلي برستن

**خُلع**:- (خُ+لَ+ع) (ع اِس مذ) د ښځې خپل خاوند نه طلاق اخستل او مهر پرېښول

**ــــ اخستل**:-اِص، د مهر پرېښولو نه پس د ښځې خپل خاوند نه طلاق اخستل

**ــــ كول**:-اِص ، د ښځې په خواست د مهر پرېښولو نه پس د خاوند خپلې ښځې ته طلاق وركول

**خلعت**:- (خِ+ل+عَ+ت) (ع اِس مذ وا ج: خلعتُونه) د عزت جوړه جامه چې د بادشاهانو۔

اميرانو د طـــرفـــه پــــه انعام كښې وركولے شي،
خلات عهد داخلعت په قامت راس دے د شيرينۍ (كاظم خان شيدا)

**ــــ اخستل**:-اِص،د بادشاه يا امير نه په انعام كښې جوړه جامه اخستل

**ــــ موندل**:-اِص، د بادشاه يا امير نه جوړه جامه په انعام كښې حاصلول

**ــــ وركول**:- اِص،د بادشاه يا امير چاته په انعام كښې جوړه جامه وركول، عزت زياتول

**خَلف**:- (خَ+لَ+ف) (ع اِس مذ) (۱)جانشين، قائم مقام (۲) زوے، فرمانبردار او تابعدار زوئے۔(۳)وارث

كه دا هومره خلف واړه خلف دے
نن بـــه مـــا نوبت واهۀ د خروانو (خوشحال بابا)

**خُلفا**:- (خُ+لَ+فا) (ع اِس ج وا: خليفه) خليفه ګان، جانشينان، قائم مقام

**خُلفائے راشدين**:- (خُ+لَ+فا+ئے+را+ش+دِ+ي+ن) (ع اِس مذ ج)د حضرت رسول كـريم صلي الله عليه وسلم روښتي څلور واړه خليفه ګان، حضرت ابوبكر صديق، حضرت عمر فاروق، حضرت عثمان او حضرت علي رضي الله عنهما

**خُلق**:- (خُ+ل+ق) (ع اِس مذ) ښۀ خوئ ښۀ طبيعت، مزاج يا عادت، نېک طبيعتي، خلقو سره د ډېرے ښے راشه درشه ساتلو خوئ خُلقت

**خَلق**: - (خَ+ل+ق) (ع اِس مذ) (۱) پیداوښت (۲) مخلوق، اولس

خدایه څهٔ شو هغه ښکلي ښکلي خلق
په ظاهر په باطن سپین سپېڅلي خلق (رحمن بابا)

**خَلَق**: - (خَ+لَ+ق) (پ اِس وا ج: خلقي) مخلوق، اولس، خلک

تاچې سترګي د خطا د ملک آهو کړے
خلقي د لـــور پـــه لـــور ورپسې هو (کاظم خان شیدا)

**خَلقت**: - (خَ+ل+قَ+ت) (ع اِس مذ وا ج: خلقتُونه) مخلوق، اولس عالَم

**خِلقت**: - (خِ+ل+قَ+ت) (ع اِس مذ) پیداوښت، فطرت، طبیعت

په خلقت کښې د خوبانو اخلاص نشته
په صورت کښې د عشاقو لباس نشته (علي خان)

**خُلقت**: - (خُ+ل+قَ+ت) (ع اِس مذ) خُلق، مروت

ایراني د آشنائي د وفادي
د خلقت د مروت دي د معاش (خوشحال بابا)

**خلقه**: - (خَ+لَ+قَه) (ع: خلق اِس وا ج: خلقي) مخلوق، خلګ، اولس عالَم

تورے زلفے بویه خط و خال زرو زېور هم
مخ چې ښائسته وي خلقه ئې ننـــداره کا (خوشحال بابا)
ج: الحدر آشنا د میني له دریابَ
خلقې په دے دریاب کښې شوے غرقابَ (علي خان)

**خِلقي**: - (خِ+ل+قِي) (ع ص) پیدائشي، فطرتي، قدرتي

**خلکتي**: - (خَ+ل+ک+تِي) (اَف:پ (قاموس) اِس ص مذ) د خوږے خولې خاوند، خوش خُلقه

**خلکه**: - (خَ+ل+کَه) (پ اِس مؤ وا ج: خلکي) د پښتنو د ځینو قبیلو مخصوص قمیص اوږد، ارت، پلن، په خاص ډول جوړ قمیص چې ګرېوان ئې واز وي

**خلکے**: - (خ+ل+کَے) (پ اِس تصغیر مذ وا ج: خلکي) وړوکے خلے، تیلے، خلال، غاښ ټُومبنے

**خَلک**: - (خَ+ل+ګ) (پ اِس مذ) و – خلق

**خُلګۍ**: - (خُ+ل+ګۍ) (پ اِس مؤ وا) خولهٔ، جَبي، مُچې

**خَلل**: - (خَ+ل+ل) (ع اِس مذ وا) (۱) رخنه، ورانے، خرابي، نقصان

تل خالي وي له خللَ د رښتیا مینے اساس (خوشحال بابا)

(۲) بد هضمي، د خېټې خرابي (۳) د مازغو خرابي، فتور (٤) د پېریانو اثر

**ـــ پرېوتل**: -اِص، رخنه پرېوتل، ورانے راتلل، نقصان پیدا کېدل، خرابے راتلل

**ـــ په کښې اچول**: -اِص، رخنه په کښې اچول، خرابول، ورانول، خلل په کښې ګډول

**ـــ په کښې ګډول**: -اِص، و - خلل په کښې اچول

چې آسمن په کښې خلل او تزویر ګډکَ
نـــو سنـــدروته ټول شوي په ویر ګډکَ (علي خان)

**ـــــ راتلل**: -اِص (۱) نقصان یا فساد پیدا کېدل (۲) بد هضمې کېدل، خېټه خرابېدل

**په دماغ کښې خلل راتلل**: -اِص، مازغهٔ خرابېدل، پاګل کېدل، لېونے کېدل سودائي کېدل۔

**خَللي**: - (خَ+لَ+لِي) (فا اِس ص) (۱) چې په دماغ کښې ئې خلل وي چې مازغهٔ ئې خراب وي لېونے، پاګل، سودائي (۲) ورانکارے، نقصان ورکوونکے، دخل ورکوونکے

**خلاّق**: - (خَ+ل+لا+ق) (ع اِس ص مذ) ډېر زیات پیدا کوونکے، خالق، د الله تعالي یو صفاتي نوم

**خلنج**: - (خ+ل+ن+ج) (پ (راوړتېې) اِس مذ وا ج: خلنجان) یو قسم توت چې سرے او سپینے دا ے ئې وي

**خلنځه**: - (خ+لَ+ن+د+زه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) د بلوط لویه غټه اُونه

**خلوت**: - (خ+لو+ت) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱) کاواک، پوچ ګو، بې واکه (۲) تش، ډډ، خالي، (۳) سست

**خلوت**: - (خَ+ل+وَ+ت) (ع اِس مذ) (۱) یوځے والے، بېل والے، په ګټ کښې ناستے

کـه شـیـخ ځـان ولـي خـان ته فرښته کا
په خلوت کښې غېرې چارې کاندے پټ

(۲) خالي ځاے، کوټنۍ، حجره ګۍ، پټ ځاے (۳) د اُوده کېدو ځاے، پړده

**ـــ کول**: -اِص (۱) یواځې کېدل، ځان له کېدل (۲) ښځې سره په پړده کښې یو ځاے کېدل

**ـــ کېدل**: -اِص (۱) یوځے کېدل ځان له کېدل (۲) کوروالي د پاره پړده کښې کېدل (۳) د عبادت د پاره ځان ته په جماعت کښې کښېناستل اعتکاف کول

**له خلوته ځکول**: -اِص، له پټه ځاے نه بهر ته راوکښل، ظاهرول

له خلوته وبازار ته ځکول شي
زاهدان د عاشقۍ په خر ښنو (حمید)

**خَلوت خانه**: - (خلوت+خَا+نَه) (فاتر اِس ص مؤ وا: ج: خلوت خانې) خلوت ګاه یواځې ځان ته ځاے، پړدے یا د تنهائي ځاے، کوټني، حجره ګۍ، د آرام او اُودهٔ کېدو ځاے

**خَلوت ګاه**: - (خَلوت+ګا+ه) (فاتر اِس مؤ) و - خَلوت خانه

**خلوت نشین**: - (خَلوت+نَ+شِي+ن) (فاتر اِس ص مذ) (۱) په پړده کښې یا په یواځې ځاے کښې کَښېناستُونکے، یواځې اوسېدونکے (۲) په چیله کښې ناست، دنیا نه په ډډه شوے

**خَلوتے**: - (خَ+ل+وَ+تے) (پ اِس ص مذ وا ج: خلوتیان) ځان ته یا په یواځې ځاے کښې اوسېدُونکے، په ګټ کښې ناست چېله شوے، دنیا نه په ډډه شوے

**خلوټے**: - (خَ+لو+ټ ے) (پ اِس تسغیر مذ وا ج: خلوټي) ورکوټے تیلے یا خلے

خـــبردار اونـــهٔ وے خلي تـــه خـــلوټے
هسې نه چې په سترګو کښې دې پرېوځي (جعفر حسین رشتینے)

**خُلـــوص**: - (خُ+لُـــو+ص) (ع اِس مـــذ) (۱) اخـــلاص، راســـتي، د زړهٔ صـــفائې (۲) ریښتینې دوستې، صادقه مینه

**خلونۍ**: - (خَ+ل+وَ+ن ۍ) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) یو غرئیز بوټے چې د چنو په شان دانے لري او خلق ئې وریتوي اؤ خوري ئې

**خلوېتـــه**: - (خ+ل+وې+تَ) (اَف:پ (قـــاموس) ص) خلـــوت، خلیوتـــه، کاواکـــه، پوچے او عبث خبرې کوونکے

**خَلوېتے**: - (خَ+ل+وې+ تے) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) کاواکي، پوچ ګوئي

**خَلوِتے**: - (خ +ل+وِي+تَے) (پ (ظفر) اِس ص مذ وا ج: خلویتي (مؤ: خلوتې) خولهٔ ویتے، بې واکه، هغه څوک چې خولهٔ ئې په واک کښې نهٔ وي، کاواکه

**خولهٔ**: - (خُ+لهٔ) (پ اِس مؤ وا ج: خُلي) (۱) د بنیادم یا د ځناور وغېره په مخ کښې هغه سُورے شان چې خوراک یا خبرې پرې کوي

دا دے خولهٔ که سرچشمه ده
د حیات که ښکلے میم دے (علي خان)

(۲) د غار یا سُوري سر (۳) د دانے سُورے چې وینه زوه پرې راوزي

**ـــــ اچول**: -اِص (۱) د ځناور په یو لوښې کښې خله اچول لوښے جوټه کول (۲) د سپي په چا حمله کول (۳) په محفل کښې خامخا ځان شاملول (٤) چا سره خامخا د جنګ جګړے خبرې کول

**ـــــ اخستل**: -اص، چپي کول، ښکلول
**ـــــ ارتول**: -اص، خولهٔ چينګول، خولهٔ وازول، خولهٔ بکه نيول
**ـــــ ارته نيول**: -اص(۱)خله چينګه نيول(۲)حيران پاتې کېدل(۳)د بې وسۍ اظهار کول
**ـــــ ارتېدل**: -اص، د څهٔ څيز حاصلولو حرص يا لالچ پيدا کېدل
**خولهٔ ازادول**: -اص(۱)د چاسره د خبرو کښې ځان ورګډول (۲)د خفګان نه پس بيا خبرې خلاصېدل (۳)بې تکلفه کېدل
**ـــــ ازادېدل**: -اص (۱)د چاسره په خبرو کښې ورګډېدل (۲)د خفګان نه پس بيا خبرې خلاصېدل (۳)بې تکلفه کېدل
**ـــــ اوبهٔ اوبهٔ کېدل**: -اص، په خولهٔ کښې اوبهٔ راتلل، څهٔ څيزو ته زړه کېدل طمع کول
**ـــــ اُوړدول**: -اص، خپلهٔ ورانول، په څهٔ خبره د مخ حليه خراپول
**ـــــ اُوړدېدل**: -اص، خولهٔ ورانېدل، په څهٔ خبره د مخ حليه خراپېدل
**ـــــ ايستل**: -اص(۱)د پټې ورخ ويستل، د پټې نه د اوبو بهر ويستلو لاره جوړول
**ـــــ بکول**: -اص (۱)خولهٔ بوڅهٔ نيول، حيران پاتې کېدل (۲)خولهٔ وازه کول
**ـــــ بکېدل**: -اص (۱)حيرانېدل (۲)خولهٔ وازېدل
**ـــــ بکه بکه کول**: -اص(۱)خولهٔ چينګه چينګه کول(۲)فضول او عبث خبرې کول
**ـــــ بکه بکه کېدل**: -اص (۱)خولهٔ چينګه چينګه(۲)فضول او عبث خبرې کېدل
**ـــــ بندول**: -اص،چپ کول، غلې کول، لاجوابه کول
**ـــــ بندېدل**: -اص،چپ کېدل، لاجوابه کېدل، غلې کېدل
**ـــــ بنګ وهل**: -اص،د خولې نه اواز ويستل، بنګېدل
**ـــــ بوړے کول**: -اص ،خولهٔ ماتول، غابنونه ماتول
**ـــــ بوړے کېدل**: -اص، خولهٔ ماتېدل، غابنونه ماتېدل
**ـــــ بوئينيول**: -اص (۱)د خولېبوئ معلومول (۲)د چا د زړهٔ راز معلومول
**ـــــ بې ځايه خوځول**: -اص(۱)فضول غږېدل، بې واکه خولهٔ خوزول(۲)په نا مناسب وخت څهٔ خبره کول(۳)خولهٔ بې ځايه وهل، تکرار کول
**ـــــ بې ځايه سُورے کېدل**: -اص،بې واکه خبرې کول، بې موقع خبرې کول، خبرو ته ځاے ځائيګے نهٔ کتل
**ـــــ بې ځائه وهل**: -اص، و - خولهٔ بې ځايه خوځول
**ـــــ بيرته کول**: -اص، غږېدل، خبرې کول، خولهٔ سپړدل

پټ پرهر ظاهر وي د زړهٔ په مخ کښې
څوک چې خولهٔ بيرته کوي په احتياج (حميد)

**ـــــ بيرته کول**: -اص، د خبرې شروع کېدل، خولهٔ سپړدېدل
**ـــــ پاکول**: -اص (۱)خولهٔ صفا کول، خولهٔ وينځلې کېدل (۲) ذکر کول
**ـــــ پاکېدل**: -اص (۱)خولهٔ صفا کېدل، کُلهٔ وينځلې کېدل (۲) ذکر کېدل
**ـــــ پټول**: -اص (۱)چپ کېدل، غلې کېدل (۲) بُوزے وهل (۳) شرم کول
**ـــــ پڅول**: -اص، خبر لوڅ بنيادم بې جوابه کول، د چا خبره غلطه ثابتول
**ـــــ پڅېدل**: -اص(۱)د خبر لوڅ بنيادم بې جوابه کېدل، د چا خبره غلطه ثابتېدل (۲)د خبرو کولو په وخت کښې چپ پاتې کېدل، بې ځوابه کېدل
**ـــــ پخېدل**: -اص، خولهٔ راتلل، د ګرمۍ يا سکتې بيمارۍ نه خولهٔ پولۍ کېدل، يا تپاکې کېدل
**ـــــ پرانستل**: -اص (۱)څهٔ خبره څرګندول، د څهٔ پټ راز نه پرده پورته کول (۲)ژبه خوځول، خبره کول
**ـــــ پرې کول**: -اص (۱)خبره شروع کول (۲) د پټې نه د اوبو ويستل د پاره ورخ جوړول
**ـــــ پرسول**: -اص (۱)په وهلو د چا خولهٔ زخمې کول (۲)د خفګان اظهار کول، شونډے بوڅول، خفه کښېناستل
**ـــــ پرسېدل**: -اص (۱)په وهلو خولهٔ زخمې کېدل (۲) خفه کښېناستل

**ـــــ پستول**: -اص، په نياز او نرمې سره خبره کول
**ـــــ پورې منبل**: -اص(۱)څهٔ څيز د چا په خولې پورې تپل (۲)خپله خولهٔ په څهٔ څيز پورې مږل (۳)څهٔ خبره د چا په خولې کښې بندول، په څهٔ خبره بې عزته کول
**ـــــ پپولۍ کول**: -اص (۱)په څهٔ ګرم څيز خولهٔ سوځېدل(۲)د چا خولهٔ ماتېدل
**ـــــ په بله اړول**: -اص(۱)خبره بدلو، موضوع بدلو(۲)په وهلو د خولې ګونه بدلول
**ـــــ په خولهٔ**: -اص،شونډو په شونډو د بوسے په حالت کښې

مستغني بـه تـر تمـام جـهـان ببدل شي
ورسره که کښېښې خولهٔ په خولهٔ يارګډوډ

**ـــــ په وينو کول**: -اص (۱)خپلهٔ په وينو سره کول، خولهٔ په وينو لړل (۲)د چا خولهٔ په وهلو ژوبل کول
**ـــــ په وينو کېدل**: -اص (۱)خولهٔ په وينو سره کېدل (۲)د چا خولهٔ په وهلو ژوبل کېدل
**ـــــ پينځې کول**: -اص (۱)خولهٔ ټينګه بندول، شونډے ورستل (۲) چپ کېدل
**ـــــ ترخول**: -اص(۱)د خولې کوند خرابول، (۲) د خبرې مزه نهٔ کول، خبره بده لګېدل
**ـــــ ترخېدل**: -اص (۱)دخولې خوند خرا ببدل (۲) د خبرې مزه نهٔ کېدل، خبره بده لګېدل
**ـــــ ترل**: -اص(۱)خبرې نهٔ کول، غلې او چپ کښېناستل (۲)خوراک نهٔ کول، روژه ساتل
**ـــــ تپاکې کول**: -اص(۱)خولهٔ سول، څهٔ ګرم څيز خوړل (۲)چاته ډېرے زياتے د نصيحت خبرې کول
**ـــــ تپاکې کېدل**: -اص (۱)خولهٔ سوځېدل (۲) چاته ډېرے زياتے د نصيحت خبرې کېدل
**ـــــ تېرول**: -اص (۱)نمرئ يا ګپه خوړل (۲) د چاړے چاقو يا لور مخ تېرهٔ کول (۳)په خبرو کښې زور پيدا کول
**ـــــ جختول**: -اص،د چا سره خولهٔ نژدې کولچاته په غوږ کښې خبره کول
**ـــــ جُوټه کول**: -اص،څکه قدر کول، ډېر لږ خوړل
**ـــــ جوړول**: -اص (۱)خولهٔ ورانول (۲) څهٔ خبرې کولوته ځان تيارول (۳)ګپه جوړول، نمرئ جوړول
**ـــــ جوړېدل**: -اص (۱)خولهٔ د څهٔ مرض نه ښه کېدل (۲)د څهٔ خبرې کولو د پاره بانه په لاس راتلل
**ـــــ چپي کول**: -اص، خله ښکلولو ، مينه کول، بوسه اخستل
**ـــــ چينګه چينګه کول**: -اص (۱)بې ضرورته مُسکے مُسکے کېدل (۲) هېڅ بې هېڅه په خبرو کښې ځان ورګډول
**ـــــ چينګول**: -اص (۱)خولهٔ وينول، خولهٔ وازه کول، (۲) عبث او فضول ږغېدل
**ـــــ چينګه نيول**: -اص (۱)خولهٔ کږه نيول، خولهٔ ورانول (۲)کچه کېدل، شرمېدل(۳)په څهٔ کار کولو کښې پاتې راتلل (٤) د څهٔ خبرې جواب ترے نهٔ جوړېدل
**ـــــ چينګېدل**: -اص(۱)خولهٔ ويتېدل، خولهٔ وازيدل (۲)عبث او فضول ږغېدل
**ـــــ حلواته جوړول**: -اص ،د چا خولهٔ ماتول، په وهلو وهلو د چا غابنونه ماتول
**ـــــ حلواته جوړېدل**: -اص، د چا خولهٔ ماتېدل، په وهلو وهلو د چا غابنونه ماتېدل
**ـــــ خاښتېدل**: -اص (۱)په خولهٔ کښې خارښت پيدا کېدل (۲) خامخا په خبرو کښې ځان ورګډول، ډېرے خبرې کول
**ـــــ ختل**: -اص(۱)د سختې تبې ت نه پس وربښکې او شونډې زخمې کېدل

(۲)څوک د چا نه قلاربدل

ـــــ **خرابول**:-اص ،خولهٔ ګنده کول، دخولې خوند خرابول

ـــــ **خرابېدل**:اص، خولهٔ ګنده کېدل، دخولې خوند خرابېدل

ـــــ **خولهٔ کېدل**:-اص (۱)ډوډۍ نمرۍ نمرۍ کېدل (۲)څهٔ څیز خوړلو ته زیات خواهش پیدا کېدل (۳) په څهٔ خبره حیرانېدل

ـــــ **خوړل**:-اص،ښکلول، چیچي کول، بوسه اخستل

خـولـهٔ ئې پـتـه خـوره خوشحالَ
باز د ښکار غوښې په غلا خوري

ـــــ **خوږول**:-اص(۱)چاتـه څهٔ خوږ څیز ورکول (۲) د څهٔ زیري یـا مبارکۍ پـه موقعه چا ته څهٔ خواږه ورکول (۳) بډے رشوت ورکول

لـــه هغـــو تـارخهٔ وئیل شي د حق پاتے
چې ئې خولهٔ کاندے خوږه د حلوا طمع (حمید)

ـــــ **ډکول**:اص (۱)په ښهٔ شان مړول (۲) بډے رشوت ورکول (۳)لږ څهٔ خوړل (٤) د چا غیبت کول

ـــــ **ډکېدل**:-اص (۱)لږ څهٔ خوړلے کېدل (۲)خولهٔ د وینو زوؤ نه پُر کېدل

ـــــ **ډیوه ډیوه کېدل**:-اص،خولهٔ بوڅه بوڅه کېدل

ـــــ **راتلل**:-اص ، و –خولهٔ پخېدل

ـــــ **راټولول**:-اص (۱)خولـهٔ بندول (۲) د کچه کېدو یـا شر مېدو نه پس خولـهٔ بندول

ـــــ **راټولېدل**:-اص (۱)خولهٔ بندېل (۲) د کچه کېدو یا شرمېدو نه پس خولـهٔ بندېدل

ـــــ **راسپړدل**:-اص (۱)خبرې شروع کول (۲) د څهٔ خبرې جواب کول

ـــــ **سپړدل**:اص (۱)د غوټۍ خولهٔ وازول، د غوټۍ نه ګل جوړېدل(۲) خبره شروع کول

ـــــ **سنبالول**:-اص،ژبه نیول، یا قابو کول، خولهٔ سمه خورول، د خلے نه عبثے او خوشے خبرې نهٔ ایستل

ـــــ **غـوړول**:-اص(۱)پـه خولـهٔ ګـوړ څیز لګـول (۲) چاتـه لـږ څـهٔ ورکـول (۳) خوشامنده کول

ـــــ **غوړېدل**:-اص (۱)په خولهٔ غوړ څیز لګېدل

که به سیند کړے د غوړو تر ستوني کښته
سپوره خـــولهٔ به د حریص نشي پرې غوړه (حمید)

(۲)لږ څیز ورلولے کېدل (۳) خوشامنده کېدل

ـــــ **غوښتل**:-اص ،د چیچي سوال کول، دخولې ورکولو خواست کول

ـــــ **قابو کول**:-اص، عبث خبرې نهٔ کول، په خبرو سوچ کول،غلے کېدل

ـــــ **کنګالول**:-اص، خولهٔ صفا کېدل، خولهٔ پاکېدل

ـــــ **کږول**:-اص، (۱)خولهٔ چینګول (۲)په وهلو وهلو خولهٔ ورانول (۳) د څهٔ څیز یا خبرې نه نفرت کول (٤) غلطے خبرې کول

ـــــ **کږېدل**:-اص (۱)خولهٔ چینګېدل (۲) پـه وهلووهلو خولـهٔ ورانېـدل (۳) د څهٔ څیز یا کبرے نه نفرت کېدل (٤) غلطے خبرې کېدل (٥) لقـوے پـه وجه مخ ورانېدل

ـــــ **ګنډل**:-اص (۱)خولهٔ بندول، غلے کول، (۲) بډې رشوت ورکول

ـــــ **لګول**:-اص (۱)چک لګول (۲) زیات حرض کول (۳) خامخا جګړه جوړول

ـــــ **ماتول**:-اص (۱)بې جوابه کول، غلے کول (۲) په خولهٔ وهل، غاښونه ماتول

تـــا درې کـــاڼــي نــیولــي وائي خولهٔ دې ماتومه
چې مې خولهٔ ماته کړې یاره ښکلوم به دې په څهٔ زهٔ
(شریعت خان سائل)

ـــــ **منډل**:-اص، خولهٔ اچول، خولهٔ نته ایستل

چـې مـنډې پـه کښې سرې اوسپې خُولې سمَې
د دنیـــــا لـــــه خــــوا نـه ښـهٔ یم ښونا (حمید)

ـــــ **نهٔ جوړېدل**:-اص(۱)حوصله یا جوات نهٔ کېدل (۲) د خبرې جواب کولو نه معذوره کېدل

ـــــ **نیول**:-اص (۱)خولهٔ سنبالول، خولهٔ قابو کول (۲) خبرو ته نه پرېښول

د دولت به تهٔ هله مومے رحیمَ
که خولهٔ اونیسې له ګفته ځان خاموش کړے (عبدالرحیم هوتک)

ـــــ **وازول**:-اص (۱)د طمع او د حرض نه کار اخستل، لالچ کول، د اندازے نه زیات غوښتل (۳) بدے ردے وئیل

خو چې خولهٔ کمه سره وازه
حـال د دوارو شـي څرګند

کـه جاهل د کوهستان دے
کـــه د ښـــهـر دانــش مــند (خوشحال بابا)

ـــــ **وتل**:-اص (۱)د بیمارۍ له کبله خولهٔ ختل (۲) چاته ډېر زیات انتظار کول

ـــــ **وُچېدل**:-اص (۱)تږے کېدل، ډېره تنده کېدل (۲)د څهٔ ویرے د وجهے نه خولهٔ وُچه وُچه کېدل

ـــــ **ورانول**:-اص، ژړغونے کېدل، چاته شکل خرابول

ـــــ **ورانېدل**:-اص، په ناجوړتیا کښې دخولې خوند خرابېدل

ـــــ **ورړل**:-اص (۱)څکل،څکه کول، (۲) ایله یوه نمرۍ په څهٔ انګولې پورې کول (۳)خولهٔ ورنژدې کول، خولهٔ وروړل، خولهٔ وېرړل، خولهٔ وېړل

ـــــ **ورکول**:-اص، چپه ورکول، د چیچي کولو د پاره مخ وروړاندې کول

که په خپله رضا دروميې چاره نشته
که زما په رضا درومې خولهٔ به راکا (خوشحال بابا)

ـــــ **وروړل**:-اص، و - خولهٔ ورړل

ـــــ **وهل**:-اص (۱)خولهٔ خوځول، شـخوند وهـل، خوږ، څښـل، د ځاروي زر زر وابنهٔ یا دانه خوړل (۲) خامخا خبرې کول، فضول بحث کول، ایرے کول

ـــــ **ویتول**:-اص، و - خولهٔ چینګول

ـــــ **ویرړل**:-اص ، و - خولهٔ ورړل

**بل سره ـــــ ګډول**:-اص ،د بل سیالي کول، د پېغور یا ټکونو خبرې کول

**پټه ـــــ** :-اص، چپه خولهٔ، پټ په پټه، غلې شان

د ګفتار او د اظهار حـــاجت ئې نهٔ وي
پټه خولهٔ سوال و جواب کا یار و یار ته (حمید)

**په ـــــ** :-اص، زباني، هسې په خبرو

چې د دین دانائي نهٔ لرے په زړهٔ کښې
بیهوده ځان غټوے پــه خولهٔ ئې پوهه (حمید)

**په ـــــ بربېدل**:-اص(۱) نارے وهل، چغے وهل (۲) د دروغو ژړا کول

**په ـــــ برغولې کښېښول**:-اص، خاموشه کېدل، بیخي چپ کېدل، خبره نهٔ کول

**په ـــــ تورزن**:-اص، په خبرو تکړه، په خولـهٔ زورور، هغـه څوک چې تشے خبرې کوي

**په ـــــ جندره لګول**:-اص،خولهٔ بندول، په خولهٔ مهر لګول، خبرې نه کول

**په ـــــ جندره لګېدل**:-اص، خولهٔ بندېدل، چپ پاتے کېدل، په خولـهٔ مهـر لګېدل، داسې چپ کېدل لکه چې خولهٔ ګنډلې وي

**په ـــــ خولهٔ ویل**:-اص، په مخ مخ وهل، ډېر زیات وهل

**په ـــــ خوږ**:-اص، خوش خلقه، نرم مزاجه کوږے پستے خبرې کوونکے

حال دے واړه وار په وار راته معلوم شو
ټګـــــه یاره په زړهٔ تریخه په خولهٔ خوږَ (خوشحال بابا)

**په ـــــ راوړل**:-اص، بیانول، خبره کول، وئل

**په ـــــ زورور**:-اص، و - په خولهٔ تورزن

**په ـــــ کښې اُوبهٔ راتلل**:-اص، ډېر وکاڼې راتلل، کوزه کاتهٔ راتلل، زړهٔ خرابېدل

**پهـــ کښې خبرې کول**:-اص،ژوبلے خبرې کول، صفا خبرې نۀ کول،من من کول
**پهـــ کښې گونگرې کېدل**:-اص،چپ کېدل، غلے کېدل، خبرې نۀ کول
**پهـــ کښېوتل**:-اص،خولې ته ورتلل، لاس ته ورتلل
لکه ښکار د ډېرو سپو په خولۀ کښېوزي
فـرقتـو نـومے زړۀ هسې کـړۀ ونډ ونډ (حميد)
**پهـــ کول**:-اص، خوړل، خولې ته کول
**پهـــ لباس**:-اص، تشه خوشامنده، په خوږو خبرو
ښکته ساه پورته پېچوي
په زړۀ درد په خولۀ لباس (حميد)
**پهـــ مهر لگول**:-اص، خاموشه کېدل، خولۀ ته جندره اچول
**پهـــ مُهر لگېدل**:-اص، و - په خولۀ جندره لگېدل
**پهـــ يادول**:-اص،هسې ذکر کول، بې عمله وېنا کول
يــا دوے په خولۀ مکه او مدينه
نسکور پروت ئې د عورتے په سينه (رحمن بابا)
**په ډکهـــ خندا**:-اص، زړه د اخلاصه خندا
پــه مـحفل کښې د مـينا يوه گړئ
په دا ډکه خولۀ خندا وگوره درومه (کاظم خان شيدا)
**په ډکهـــ کنځل**:-اص، ډېرے بدے ښېرے يا زيړے کول
**تنکےـــ**:-اص،پسته خولۀ، ښکلے خولۀ
چې ئې ستا د تنکے خولې تصور واخست
پــه دا فکر کښې غنچه شوه په زړۀ تنگه (حميد)
**تنگهـــ**:-اص، ورکوټې خولۀ
خــوږنــد ســـر لکه غنچه مراقبه کړي
چې زاهد د تنگے خلے ته وسواس واخست (علي خان)
**چپهـــ**:-اص، خاموش، غلے
چپه خولۀ ناست وي مرغان په گلستان کښې
گونګه ناست وي په خلوت کښې زاهدان چپ (عبدالعظيم)
**چينگهـــ**:-اص، وازه خولۀ
**خولې ته برغولے جوړول**:-اص،خله بندول، خبرې نه کول، چپ کښېناستل
**د خولې خوړل**:-اص، داسې جواب موندل چې خولۀ بنده شي، شرمنده کېدل
**د خولې خوند**:-اص ، د خولې مزه، د خولې ذائقه
**د خلې خوند خرابول**:-اص (۱)دخولې مزه او ذائقه خرابول، (۲) څوک خفه کول
**د خولې خوند خرابېدل**:-اص (۱)د چا خفه کېدل
**د خولې خوند ورانول**:-اص ، د خولې خوند خرابول
د عشق رنځ مې د خولې کوند وران که ناصحه
ځـکه بــولــم ستا د پـنـد شکرے زښتے (حميد)
**د خولې خوند ورانېدل**:-اص، د خولې خوند خرابېدل
**د خولې غل**:-اص، هغه څوک چې هر وکت غلے وي ډېرے کمے خبرې کوونکے
**د خولې کلام**:-اص، د خولې ويل، خبرې نصيحت
بند په بند ئې نظر کړه خوند ئې اخله
د دانــا د خــولې کلام لکه گنے دے (خوشحال بابا)
**د خولې نمرې**:-اص،آسانه خبره، اسان کار، ډېره معمولي خبره يا کار
**د خولې نه ايستل**:-اص، خبره کول، چاته حال بيانول
زړۀ مې د هجران له دسته کاندے واويلے
سوز د زړۀ وگـوم سړي ته اوباسم د خولې (علي خان)

**د خلې نه خبره اخستل**:-اص، د خولې نه خبره نيول، د چا خبره په نيمه کښې پرې کول، د خبرې په مېنځ کښې راټوپ کول،
**د خولې نه خبره ايستل**:-اص،د بل د خولې يا د زړۀ خبره کول، د چا نـه پـه هـم هغـه خبره کښې وراندې کېدل
**د خولې نه شور ختل**:-اص، فرياد کول
که مې ميشت په زړۀ کښې شهر د شوق نه وے
همېشه مې لـه خــولې خــېژي شــور په څۀ (حميد)
**د خولې نه کوز او پاس ايستل**:-اص، نامناسبه وېنا کول
شُدنې به کوز او پاس ذره تۀ نۀ کړے
بيهوده تر خولې اوباسے کوز او پاس (حميد)
**د خولې نه گلونه ډُوړول**:-اص (۱)خوږے خبرې کول (۲) طنزاً کنځلے کول
**د خولې نه گلونه ډُوړېدل**:-اص (۱)ډېرے ښے او خوږے خبرې کول (۲) طنزاً کنځلے کول
**د خولې ويل**:-اص ، و - دخولې کلام
د خولې ويل دے ښۀ دي پـــه دا څۀ شي
چې ښکاره دے نور عالم وته عمل دے (خوشحال بابا)
**ډکه خولۀ**:-اص، په خندا
له دلبرے نه مې خولۀ غوښته اما
ډکه خولۀ ئې راته دا اووے له ما؟ (خوشحال بابا)
**سپوره خولۀ**:اص ، وچه نمړئ
که به سيند کړے د غوږو تر ستونې کښته
سپوره خـولۀ به د حريص نۀ شي پرې غوږه (حميد)
(۲)ستغے خبرې، سختے خبرې
**سپينه خولۀ**:-اص (۱)کم عمر، نابالغ (۲) ښکلے مخ
کله زخم د مانړے ورباندے کښېږدي
کله بيا دارو د زړۀ په سپينه خولۀ کا (خوشحال بابا)
**قپه خولۀ**:-اص، وازه خولۀ، ماته خولۀ، کلپۍ خولۀ
دغه مزکے چې نيولے ده خولۀ قپه
عاقبت بـه دغه ښۀ ياران که هپه (عبدالعظيم)
**له خولې ايستل**:-اص، خبره کول، خبره ښکاره کول
چې نااهل ته ئې څوک له خلې اوباسي
دُردانه کاندې د خپلې وېنا پـــوچــه (حميد)
**ورپه خولۀ**:-اص، په خولۀ کښې
چې تا مې د خپلو شونډو ور په خولۀ کړه
طائفه دے د صوفيانـو کـــړه مخموره (رحمن بابا)
**خَلے**:- (خَ+ لے) (پ (ظفر) اس مؤ ) کلۍ، غُوټۍ
**خلے** :- (خَ+ لے) (پ اس مذ وا ج: خلي) (۱) تيلے ډکے
اوس مې ستا په مينه ځان او جهان هېر شو
د سېلاب پـــه مـخ کښې لاړم لـــکه خلے (رحمن)
(۲)معمولي او بې قيمته څيز
**خلي ته خلوټے** :-اص، چاته په سپک نظر کتل
**خلې سپينېدل**:-اص، د ږيرے وېښته سپينېدل، بوډا کېدل
**خلے شنۀ کېدل**:-اص،په مخ وېښتۀ راښکاره کېدل، ږيره پېدا کېدل، زلمے کېدل
**ـــ وروړل**:-اص، تيلے يا ډکے په کښې وهل، فتنـه فساد جوړول، د جنگ بنا کښېښودل، تحريک ورکول
**ـــ وهل**:-اص (ظفر) اص،تحريک ورکول، جنگ ته تيارول

**خَلبت**:- (خَ+لِي+ت) (پ (ب،خ) اس مذ) (۱)شک، ارمان (۲) کسر، کمي

**ـــ ايستل**:-اص، شک ايستل، ارمان رژول

**ـــ وتل**:-اص، شک لرے کېدل، ارمان رژېدل

**خَليج**:- (خَ+لِي+ج) (ع اس مذ وا ج: خَليجُونه) (۱)د اُوبو هغه ټوټه چې درې خواته ترے نه وچه زمکه وي او صرف يو اړخ ئې سمندر سره لګېدلے وي (۲)د دؤو ډلو يا فريقو تر مېنځ څۀ قسم بېلتون، بندېز، خنډ

**خليفه**:- (خَ+ لي+فه) (ع اس مذ وا ج: خليفه ګان) (۱)قائم مقام، جانشين (۲) د رسـول کـريم صـلي الله عليـه وسـلم نـه پـس د مسـلمانانو اميـر، اميرالمؤمنين (۳) د مسلمانانو بادشاه (٤) اص، نائي، حجام

**خَليق**:- (خَ+لِي+ق) (ع اس مذ) خوش خُلق، خوش اخلاقه، د ښۀ خوئ خاوند، د ښۀ مزاج او طبيعت خاوند، چې خلقو سره ښۀ سلوک کوي

**خَليل**:- (خَ+لِي+ل) (ع اس مذ وا) (۱)ريښتونے دوست، دوست (۲) د حضرت ابراهيم عليه السلام لقب

د خاطر د خليل ويره مې ترے نشي
که په بـد ے شي رقيب لکه نمرود (حميد)

(۳)د پېښور په علاقه کښې د پښتنو يوه قبيله

زۀ عاشق يم سروکار مې د ے له عشقه
نـۀ خليل نـۀ داوز ے يم نـۀ مهمند (رحمن بابا)

**خَليلُ الله**:- (خَ+لي+لُ+ل+لاه) (ع اس ص مذ) لُغ: د خدا ے تعالي دوست، د حضرت ابراهيم عليه السلام لقب د ے

**خليلي**:- (خ+لِي+لِي) (اَف:پ (قاموس) اس مذ ج) يو قسم سپين انګور چې مهينه ږومبے پخېږي

**خلوته**:- (خ+لي+و+ته) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) و - خَلوېته

**ـــ کول**:-اص، پُوچه وېنا کول، عبث ږغېدل، بې فائدې خبرې کول، کاواکے کول

**ـــ کېدل**:- (اَف) اص، پُوچے خبرې کېدل، بې فائدې خبرې کېدل، کاواکے کېدل

**خَم**:- (خَ+م) (فا اس ص مذ وا ج: خمونه) (۱)کوږ، څنګزن، پـه تـرخ، کُنډه شوے (۲)تاؤ راتاؤ، الوول (۳)کوږ والے، کږلېچ

پېچ وخم فـــکر ئې سم د زلفو خـــم کړ
پـه دغـه تاؤ کښې د د ے غشي خم وخوت (علي خان)

**په خم**:-اص، کوږ ووږ، تاؤ راتاؤ

لکه بانس د پالکۍ په سيخ کرېږي
قدمے هسې ستا د روزو خم په خم شۀ (علي خان)

**خم کول**:-اص، تاؤ راتاؤ کول، الوول کول

دا ګلزار د هېڅ ګلزار سره سم نۀ د ے
چې زلفينے په سپين مخ راته خم خم کړ (خوشحال)

**ـــ کړول**، تاؤ کول، په ترخ کول

**ـــ کېدل**:-اص، کږېدل، تاوېدل

خم د زلفو يم محراب د کږو وروځو
زۀ د مار او د لړم په څېز خم نۀ يم (رحمن بابا)

**خُم**:- (خُ+م) (فا اس مذ وا ج: خُمونه) (۱)د تنګے خولې لوئ منګے يا مټ د تنګے خلے چاټيځ(۲)د منګي يا مټ په شان لو ے لوښے چې شراب په کښې ږدي

څوک خُمونه تشوي مستي ئې نۀ وي
څوک د ميو عـــربده کا په څو ګوټ (خوشحال بابا)

(۳)د دوبي بټيځ

**خُمار**:- (خُ+ما+ر) (ع اس مذ) (۱)د شرابو څښلو يا د ډېر خوب نه پس د سترګو حالت په سترګے درنے درنے او سرے شوے وي (۲) د شرابو نشـه کمېدو په وخت د سر درد وغېره (۳)نشه، سُرور، د شرابو مستي

بيا مې په سر کښې کيف د مينے له خماره ګرځي
څکه نن سر په ما پر کار غونډې بې واره ګرځي (علي خان)

**خُمار**:- (خُ+مـا+ر) (پ (راورټي) اس مـذ وا ج: خُمـاري) د عربـي ټکـي قمـار نـه پښتو شوے، جواري، شرط

**ـــ کول**:-اص، جواري کول، شرط کول، داؤ لګول

**خُمارباز**:- (خُمار+بـا+ز) (پ (راورټي) اس ص مـذ وا ج: خمارباـزان) شـرطي، جواري کوونکے، شرط کوونکے، داؤ لګوُونکے

**خُماربازي**:- (خُمار+با+زي) (پ (راورټي) اس مؤ وا ج: خُمابازئ) قمار بازي، جواري، شرط

**خُمارخانه**:- (خُ+ما+ر+خا+نـهَ) (فا اس مؤ وا ج: خمارخاني) شراب خانه هغـه خاص ځا ے چېرته چې شراب څښلے شي ،خُم خانه، خُم کده

**خماري**:- (خُ+ما+رِي) (پ ص) (۱)په نشه کښې (۲)د خوب يا د مينې ډکې، د نشے ډکې، ښکلے

**ـــ سترګې**:-اص، د نشې ډکې سترګې د مينے ډکې سترګې

چې ورواړوي خمارے برندې سترګې
طـــائفې د صـــبر واړه فـــو فنـاک (علي خان)

**خَمازوره**:- (خَ+ما+زُو+رَه) (پ (ګن) اس مؤ وا ج: خمازُوري) پ (ګن) اس مؤ وا ج: خمازُوري) يو بوټے د ے چې د خړ رنګ پاڼپاو ميوه ئې وي ميوه ئې د ببـرې قـدر وي او پـه کښـې نرمـې ورېـ ورېـ دانـې وي، د خېټې د خُوږ دپاره استعمالېږي

**خمبچه**:- (خَ+م+بَ+چَه) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ وا ج: خمبچې) د چرګ پنجه، منګلے

**خَمبه**:- (خَ+م+بَه) (پ اس مؤ وا ج: خمبې) د غلے د ساتلو د پاره جوړ لوے کندو يا ايکونه

**خمبير**:- (خَ+م+بِي+ر) (پ اس مذ) خمير، دا خنبلي څيز لکه اُوړو وغېره يو ساعت پس ډډېدل، پړسېدل او تروېدل

**خمبيرک**:- (خَ+م+بِي+ر+ک) (پ (مهمند) اس مذ) يو قسـم ځنګلي ساک چې په سپرلي کښې خېږي

**خمبيره**:- (خَ+م+بِي+رَه) (پ اس مؤ وا ج: خمبيرې) خمبيره شوي اُړو ه ډوډئ تروه ډوډئ، مايه

**ـــ کول**:-اص، د اخنبلو نه پس څۀ ساعت د پاره پرېښول چې وپُړسېږي او لړتراوۀ شي

**ـــ کېدل**:-اص، د اُړو پړسېدل او تر يو کېدل

**خَمباره**:- (خَ+م+پـا+رَه) (اَف:پ (قـاموس) ص) (۱)اَرت، آزاد، کشـاده (۲) يـو قسم وړوکې توپه (۳) د کاريز د ږومبي کوهي د خولې ياله

**ـــ کول**:- (اَف) اص، ارتول، کشاده کول

**ـــ کېدل**:-اص ، ارتېدل، کُشاده کېدل

**خَمتا**:- (خَ+م+تا) (پ اس مؤ وا ج: خمتاګاني) خامتا، غتـه شډله د کډۍ کوره کپړه د څرخے درشلي شوي تارونو نه اُبدلې کپړه

**خمتينه**:- (خَ+م+تِي+نه) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) يو قسم نخئ د قسم درئ

**خمټ**:- (خَ+م+ټ) (پ (راورټي) ص مـذ وا ج: خمټي (مؤ وا : خټـه ج: خمټې) ښکلے سپين څورب، او غټ پټ ماشوم، تازه تيار غوښن، روغ جوړ

**خمټ تـوب**:- (خمټ+تو+ب) (اَف:پ (قـاموس) ص مـذ) څـورب، غـټ والے، څربښت د بدن تازګي

**خمټول**: - (خ+م+ټ+و+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت) ځربول، غټول

**خمټي**: - (خ+مَ+ټي) (اَف:پ (قاموس) اِس مص ج) غټي غټي نمرۍ، ګېږي

**ـــ وهل**: - (اَف) اص، غټت غټې نمرۍ کول، ګېږې وهل

**خمټېدل**: - (خ+مَ+ټي+د+ل) (اَف:پ (قاموس) مص لا) سپين ځورب کېدل، غټ مټ کېدل

**خمچ**: - (خ+مَ+چ) (پ (خ) اِس مذ وا ج: خَمچي) باجره، يوه غله چې دانې ئې ډېرې ورې وي او په ژمي کڅې کېږي

زما ستا په خولهٔ به مرګ کا تورے خاوري

کــــه تــــهٔ هر کله حلوا خورے زهٔ خمچي (خوشحال بابا)

**خمچکي**: - (خ+مَ+چ+کي) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ ج) منګاري، نوکاري، نوکراغې

**خمچه**: - (خ+م+چه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) (۱)کچه ګوته، وړوکې ګوته (۲) د چرګ پنجه (۳) ګوتې (۴)د ګډ د پُښتۍ آخري حصّه (۵) د خرابو جوارو د قسم يوه ګله، خنجرے

د خپلې خُونې نغن د خمچو

نهٔ چې غنمينه د بل په کچو (خوشحال بابا)

**خمچۍ**: - (خ+م+چۍ) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) وړوکې ګوته

**خمچي**: - (خ+م+چي) (اَف:پ (قاموس) اِس ج) (۱)باجري(۲)د وريځو وغيره وړې ټوټې، ماتېګوډې وريځې، ټوټه وريځې (۳) د معمولي غلې ډوډۍ

**خمچين**: - (خَ+م+چي+ن) (پ (اورک) اِس مذ) متروکه، چابک

**خمځهٔ**: - (خ+مَ+ت+سه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) مبتلے شوے، سُولولے قروت وغيره سُولول

**کول**: - (اَف) اص، قروت مبتل يا سُولول

**کېدل**: - (اَف) اص، قروت مبتلے کېدل يا سُولېدل

**خُم خانه**: - (خُمَ+خا+نَه) (فا اِس مؤ وا ج: خُم خاني) خُم کده شراب خانه د شرابو ځاے

**خَمدار**: - (خَ+م+دا+ر) (فا ص مذ (مؤ وا : خمداره ج: خمداري) کوږ لچکدار

**خمر**: - (خَ+م+ر) (ع اِس مذ)شراب هغه شربت چې سرے پرې نشه کېږي، د خاورې يا پيتل نه جوړ د تنګې خولې وړوکې لوښے چې اوبهٔ په کښې ځښې پياله کُنجۍ

**خمرۍ**: - خُ+م+رۍ (پ (راورټي) اِس مؤ) د خاورې يا پيتل نه جوړ د تنګې خولې وړوکے لوښے چې اوبهٔ په کښې ځښې ، پياله کُنجۍ

**خُمرۍ**: - (خُ+م+رۍ) (پ (ظفر) اِس مؤ) (۱) کنډول، پياله (۲) د فقيرانو د پکر لوښے، کچکول، د کجورې د پاڼو نه جوړ وړوکے پُوزے چې نمنوځ پرې کوي

**خمزرۍ**: - (خ+م+زُو+رۍ) (پ (ظفر) اِس مؤ)شاپيانګه، شپيانګه، يو خړ رنګے بوټے

**خمزورے**: - (خ+م+زُو+رے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خمزوري)يو قسم خړ رنګے بُوټے چې د سنځلې په شان پاڼې لري زېړې دانې وي په کښې چې بانډېځيان ترې نه پنير جوړوي

**خَمسور**: - (خَ+م+سو+ر) (پ ص مذ وا (مؤ وا: خمسوره ج: خمسوري) (۱)آزاد، بې تکلفه، د قاعدې دستور نه بې پروا(۲)سيال

اشنائي د نــــاکسانــو د ځان غم دے

ناکسان له خپله ځانه خمسور مه کړه (خوشحال بابا)

د نــــاجنسو، د کنځلو بــه خــواږه وي

که خمسور سړے کنځل کړي وخمسور ته (علي خان)

**خمســـور کېــدل**: -اص (۱)آزادېــدل (۲) ملګــرے کېــدل، بــې تکلفــه کېــدل

(۳)خلاف د حيا او شرم (کامل)

د مېږهٔ په ږيره نهٔ خاندي نور څهٔ کا

چې د بل سره خبرې کا خمسوري (خوشحال بابا)

**خَمســـور تــوب**: - (خمســـور+تو+ب) (پ ص مـذ) خمســـورتيا، خمســـوروالے، خمسوري (۱)آزادي (۲) ملګرتيا

**خَمسورتيا**: - (خمسور+ت+يا) (پ ص مؤ) و- خمسورتوب

**خمسوروالي**: - (خمسور+وا+لي) (پ ص مذ) و -خمسورتوب

**خَمسورول**: - (خَ+م+سو+ر+و+ل) (پ مص مت) آزادول، بې تکلفه کول، د رسم و رواج د بندېز نه آزادول، خمسورونه

**خَمسورونه**: - (خَ+م+سو+ر+و+نه) (پ حمص) و- خمسورول

**خمســروُونکے**: - (خَ+م+سو+ر+وُو+ن+کے) (پ اِس فـاع مـذ وا ج: خمســروُونکي (مؤ: خمسروُنکې) آزادي ورکوونکے

**خمســـوري**: - (خَ+م+ســو+ري) (پ اِس مـؤ) (۱)آزادي، بــې تکلفــي (۲) ملګرتيــا، همراهي

**خَمســـورے**: - (خَ+م+ســو+رے) (اَف:پ (قــاموس) اِس مـذ) (۱)آزاد (۲) ملګــرے، جوړه سيال

**خَمسورېدل**: - (خَ+م+سو+رې+د+ل) (پ مص لا) (۱)آزادېدل، بې تکلفه کېدل (۲) ملګرے کېدل

**خمسورېدنګ**: - (خَ+م+سو+رې+د+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص)و - خمسورېدنه

**خَمسورېدنه**: - (خَ+م+سو+رې+دَ+نه) (پ حمص) خمسورېدنګ، آزادېدل

**خَمسورېدُونکے**: - (خَ+م+سو+رې+دُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خمسورېدُنکي) (۱)آزاديدوُنکے (۲) ملګرے کېدوُنکے، جوړه کېدوُنکے

**خَمسوز**: - (خَ+م+سو+ز) (اَف:پ (قاموس) ص) نيم پُختـه، چې پـوره نهٔ وي پـوخ شوے، کنه نميم پُوخ

**ـــ کول**: -اص نيم پُختـه کول، پوره نهٔ پخول

**خمسوز کېدل**: -اص، نيم پُخته کېدل، پوره نهٔ پخېدل

**خَمسه**: - (خَ+م+سَه) (اَف:پ (قاموس) اِس ص مؤ) د غنمو يا د اوربشو نوے فصل چې مزکه پرې شنه ښکاري يعني لږ راختلے فصل چې مزکه پټه کړي

**ـــ کېدل**: - (اَف) اص ، د غنمو اوربشو فصل راټوکېدل، مزکه شنه کېدل

**خمکاره**: - (خَ+م+کا+رَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) د ګلکارئ يو قسم په جامو باندے د کناري او ګلکارئ کار

**خُم کده**: - (خُم+کَ+دَه) (فا اِس مؤ وا ج: خُم کدي) و - خُم خانه

**خملے**: - (خ+م+لے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خملي) ګرنګ چې د پوزې نه را ويزان وي

**خَمن**: - (خَ+م+ن) (اَف:پ (قاموس) ص مذ (مؤ وا ج: خمنه ج: خمني) کوږ وُوږ، تاؤ راتاؤ

**خَمنډ**: - (خَ+مَ+ن+ډ) (اَف:پ (قاموس) اِس ص مذ) غټ، ځورب، غټ کټ

**خمنډک**: - (خَ+مَ+ن+ډ+ک) (پ (ظفر) اِس مذ (مؤ: وا: خمنډکه ج: خمنډکي)کُونے، يو قسم چينجے چې د بزو په ځرمنې پورې نښتے وي او وينه ترځښي، چيچړئ

**خمنول**: - (خ+م+ن+و+ل) (پ مص مت) کږول، ټانډول، ټاټ کول

**خمنېدل**: - (خ+م+نې+د+ل) (پ مص لا) کږېدل، ټانډېدل، ټاټ کېدل

**خمير**: - (خ+مې+ر) (پ ص مذ) (۱)خمبير، هغه لمدهٔ زاړهٔ اغېږلي شوي وړهٔ چې د نورو وړو خمبيره کولـول د پـاره پـه کښې اچولے شي، خمبيره روټۍ، پړ سېدلي روټۍ (۲)اصل، ذات

**ـــ کول**: -اص (۱)خمبيره کول، صکا کول، ناکاره کول (۲) ښهٔ وهل ټکول

ټپه: پرېږه چې ښهٔ مې خمبيره کړي

زهٔ د آشنا له ميني نهٔ اوښتېدمه !

**ـــــ کېدل**:-اص (۱)خمبیره کېدل (۲) ښهٔ وهلے ټکولے کېدل

**خمیرکي**:- (خ+مِي+ر+کي) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ)د مالګې لوښے، نمکدان

**خمیرول**:- (خ+مِي+ر+و+ل) (پ مص مت)خمبیره کول

**خمیرونه**:- (خ+مِي+ر+و+نه) (پ حمص)خمبیره کونه

**خمیروُونکے**:- (خ+ مي+ر+وُو+ن+کے) (پ فاع مذ وا ج: خمیروُونکي (مؤ: خمیر وُونکې)خمبیر کوونُکے

**خمیره**:- (خ+مِي+رَه) (پ اِس مؤ وا ج: خمیري)خمبیره

**خمیرېدل**:- (خ+مِي+ر+د+ل) (پ مص لا)خمبیره کېدل

**خمیز**:- (خَ+مِي+ز) (اَف:پ (قاموس) ص مذ (مؤ وا: خمیزه ج: خمیزي) ټاند، کوږ، راتاؤ

**خَمیس**:- (خَ+مِي+س) (پ (ګن) اِس مذ)د زیارت ورځ، اودینه، د هفتے شپږمه ورځ (خ) د ایکېن ورځ

**خناړینه**:- (خ+نا+ړِي+نه) (اَف:پ (قاموس) ص مؤ)څیرل، شلول، څیرنه، شلونه خناورتوب

**خَنازیو**:- (خَ+نا+زِي+ر) (ع اِس مذ ج)د غاړې یا د څټ انجیروُنه (انجیرے) یو قسم د دانو مرض، دانے چې په څټ کښې کېږي

**خَنّاس**:- (خ+ن+نا+س) (ع اِس مذ) شیطان په زړهٔ کښې وسوسه اچوونکے

هسې رنګ په مذبذب صفت موصوف شوے

نـــهٔ پـــوهېږم چې تـــهٔ نـــاس ئې یـا خناس (رحمن بابا)

**خُناق**:- (خُ+با+ق) (ع اِس مذ) دغـاړې دیو رنځ نوم دے چې غـاړه پـه کښې ستغه اوازغي ازغي کېږي

**خَن ټېرے**:- (خ+ن+ټې+رَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ (مؤ خن ټېرې) تاؤ راتاؤ، منجیله، راتاؤ کړے شوے

چې سرے په مزکه کښېني څهٔ زرغون کړي

منجیله چې پـــه دولت شي نـــو ښامار شي (غني خان)

**خنجاره**:- (خَ+ن+جا+رَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) (۱)د باجرے روټۍ، ډوډۍ

چې بې غمه بې وباله ئې خوراک دے

د بادشاه تر خوانه بـه ګنم خنجارے (خوشحال بابا)

**خنجاړي**:- (خ+ن+جا+ړِي) (اَف:پ (قاموس) ص) خانچپا، خنجړا

**خُنجاړے**:- (خُ+ن+جا+ړَے) (پ (ګن) اِس مذ وا ج: خنجاړي) ذره، بکسکے، وړه ټکړه

**خَنجاړے**:- (خَ+ن+جا+ړَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) بې سره، خوشکے، آواره ګرد، خوشاټر

**خنجر**:- (خ+ن+ج+ر) (فا اِس مذ وا ج: خَنجرُونه) تېغ، تُوره، چاړهٔ

د مـــار کـــه نهٔ وي په تن زهر

سردار که نهٔ لري خنجر د قهر

دا دوارهٔ تـوکه بـه زمـا په پوهه

نهٔ یاد په کلي وي نهٔ یاد په ښهر (خوشحال بابا)

**خَنجر خطي**:- (خنجر+خَ+طِي) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) (۱)د خط تُوره یا نیزه یا چاړهٔ چې کښلے وي (۲) ښغه نېزه

**خنجرے**:- (خ+ن+جَ+رَے) (پ (ظفر) اِس مذ وا ج: خنجري) د باجرے پـه شان یو قسم غله د دغې غلې نه پخه شوے ډوډۍ

**خنجرا**:- (خ+ن+ج+ړا) (اَف:پ (قاموس) ص) و - خنجاړي

**خَنجک**:- (خَ+ن+جَ+ک) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)د ښوائهٔ غونددے یوه ونه او د هګے مېوه (۲)سپینه او توره بېزه یا چېلۍ، برګه چېلۍ

**خَنجکے**:- (خَ+ن+ج+کے) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـذ) د خوشـی. مسـتۍ نـه ټوپونه وهل کوز پاس کېدل، لاتدې باندې کېدل

**وهل**:اَف: پ (اِص) خوتیزے وهل، ټوپونه وهل

**خَنجے**:- (خَ+ن+جَے) (پ (ظفر) اِس مذ) (۱)خوار تېپ، لکه: خوار خنجے (۲)ذلیل، حقیر (۳) هغه وړے چې پوره ډک شوے نهٔ وي

**خَند**:- (خَ+ن+د) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)د هلکانو د یوې لوبې نوم (۲)دائره

**خَندا**:- (خَ+ن+دا) (اَف:پ (قاموس) پ اِس مؤ وا ج: خنداګاني) خندېدنه، ټوقه

چې خندائي د فرهاد په غم پرې نهٔ شوه

اوسه تل د بې ستون غر کښې اسیرے (شیدا)

**ـــــ کول**:-اص ، خندل، ټوقے کول

چې ئې پس له جدائي زیست د دُنیا کا

په هغه مینه ښائي کـــه څوک خندا کا (سعید خټک)

**وریوري ـــــ کول**:-اص ، په چا پورې ټوقے کول، د چا سپکاوے کول

**ـــــ ورتلل**:-اص (۱)خندېدل (۲)په څهٔ خبره حیراني ظاهرول

**په خندا**:-اص ، په خوشحالۍ

**بدلېدل**:-اص (۱)ټوقه جوړېدل، څهٔ خبره په خندا کښې حسابول (۲)د خندا سبب جوړېدل، خوشحالېدل

اوښکې او سلګۍ مې په خندا بدلې شوې

د آشنا بې وفـائي چې پـه وفا بدلې شوې (شمس الزمان شمس)

**په خندا خندا**:-اص ، په ټوقو ټوقو کښې،

لکه طفل په خندا خندا وترلاړ (بېدل)

**په خندا خندا کښې**:-اص ، په ټوقو ټوقو کښې

**خَنداوُو**:- (خَ+ن+دا+وُو) (اَف:پ (قاموس) ص) خنده رُویه، خندان

**خَندرکے**:- (خَ+ن+د+ر+کَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)یو قسم سپے (۲)د ګل یو قسم

**خَندق**:- (خَ+ن+دَ+ق) (ع اِس مذ وا ج: خندقُونه) هغه کنده چې د قلعه نه چاپېره کنستلے شي

**خَندک**:- (خَ+ن+دَ+ک) (پ (خ) اِس مذ وا ج: خندکُونه) دېوال

**خَندکے**:- (خَ+ن+د+کَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خندکي، خندکیان (مؤ وا: خندکے ج: خندکیاني) و - خندرکے

**خندکي**:- (خ+ن+د+کي) (اَف:پ (قاموس) اِس ج) خندا (د ماشومانو هلکانو محاوره)

**کول**:-اص ، خندا کول

**خندل**:- (خَ+ن+د+ل) (پ مص) خندا کول، ټوقے کول، خندېدل

کـاږهٔ کتل غلي خنـدل خوږه مُسکا مه کوه

زما په زړهٔ کښې تهٔ زاړهٔ زخمونه ولې چېړې (شمس الزمان شمس)

**خندنے**:- (خ+ن+د+ نے) (اَف:پ (قاموس) مذ) خندنے

**خندنے**:- (خ+ن+د+ نَے) (پ (خ) ص مذ وا ج: خندني (مؤ: خندنۍ) (۱)د خندا قابل، سپک، بې عزته،

زربه دې د درست وګړي خندنے شي

هر سړے چې په عیبونو د بل خاندي (سکندر خان)

**خَندول**:- (خَ+ن+د+و+ل) (پ مص مت) خنداور وستل، په زور خندول

**خَندولے**:- (خَ+ن+د+وَ+لے) (پ مف مذ وا ج: خندولي (مؤ: خندولې) هغه څوک چې خند ورشي یا خندا ورغلي وي

**خنـدوُنکے**:- (خَ+ن+دُو+ن+کے) (پ فـاع مـذ وا ج: خنـدوُنکي (مـؤ خنـدوُنکې) خندېدُونکے

**خَندونګ**:- (خَ+ن+د+و+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و خندونه

**خَندونه**:- (خَ+ن+د+و+نه) (پ حمص) خندونګ، خندا وروستنه خندول، داسې

کار کول چې په هغې پورې خلقو ته خندا ورځي

**خَنـدووُنکے**:- (خَ+ن+د+وُو+ن+کے) (پ اِس فـاع مـذ وا ج: خنـدووُنکي (مـؤ: خندووُنکې) خندا وروستوکونکے

**خنده**:- (خَ+ن+دَه) (پ (ظفر) اِس مذ) خندرکے، خندکے، خندے، یو قسم ښکاري سپے

**خنده رویه**:- (خَ+ن+ده+رُو+یه) (پ تر ص) خندان، خوش طبعه (خ) خوشحال ارواحه

**خَندېدل**:- (خَ+ن+دي+د+ل) (پ مص لا) و - خندل

یادمې هغه وخت دے چې په شپه به سره ناست وو

شمع بــه ژړا کــړه صراحي بـــه خنـدېـدله (خوشحال بابا)

**خندېدلے**:- (خَ+ن+دي+دَ+لے) (پ مف مذ وا ج: خندېدلي (مؤ: خندېدلې) هغه څوک چې خندلي ئې وي

**خندېـدوُنکے**:- (خَ+ن+دي+دُو+ن+کے) (پ فـاع مـذ وا ج: خندېـدوُنکي مـؤ: خندېدوُنکې) هغه څوک چې خاندي

**خُندبیل**:- (خُ+ن+د+بي+ي+ل) (پ (ظفر) مص مت) خوندي كول، ساتل، پټ ساتل

**خَنړ**:- (خَ+ن+ړ) (پ اِس مذ وا ج: خنړوُنه) (۱)کلک ازغے (۲)د وُنے غوټه (۳) د چرګ د پښې مونړ

د چـــارې د لاڑۀ کار نـــۀ دے نادانه

چې تبرونه پرې ماتېږي هغه خنړ دے (خوشحال بابا)

**خَنړک**:- (خَ+ن+ړَ+ک) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)نر زرک (۲)دېوال، خندک

**خَنړین**:- (خَ+ن+ړي+ن) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) چې غندے غوټې په کښې وي

**خنـاپس**:- (خ+ن+را+پ+س) (اَف:پ (قـاموس) ص مـذ (مـؤ وا: خناپســه ج: خناپسي) هغه سړے چې هر وخت ئې د پوزے نه ګرنګ بهېږي، ګرنګن

**خنه**:- (خ+ن+رَه) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـؤ وا ج: خنیي) ښۀ (۱)لنګ (۲) د ترخ لاندې د اړخ هغه ځاے کوم نه چې د پښې رمبے شروع کېږي

**خنزیر**:- (خَ+ن+زي+ر) (ع اِس مذ وا ج: خنزیران) سوډر، سؤر، بد مخے

**خُنکې**:- (خُ+ن+کي) (فا اِس مؤ) یخنې، ساړۀ

**زیاتېدل**:-اص ، یخنې زیاتېدل، ساړۀ زیاتېدل

**خنګ**:- (خ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ (مؤ وا: خنګه ج: خنګې) شرمېدلے، ملامته

**خَنــګ**:- (خَ+ن+ګ) (اَف:پ (قــاموس) اِس مــذ (مــؤ وا: خنګــه ج: خنګـــې) (۱)کرنګ، کوکله، یخ (۲) یخنې

**خنګ توب**:- (خنګ+تو+ب) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) کچه والے، شرمېدل

**خنګره**:- (خَ+ن+ګ+ر+ه) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـؤ وا :خنګرې) (۱)د غاښـونو د پاسه هغه سپینه ماده چې د غاښن حفاظت کوي (۲)د اغړلي شوؤ اوړو د پاسه پترے یا پیر وے شان (۳)د چائے جوش یا دیګچې په ویخ کښې چې خیرے شان جمع شي

**ــــ کول**:-اص (اَف) اص ، خنګره نیول، د اوړو د پاسه پترے راتلل، د چائے جوش یا دیګچې په ویخ کښې خیرے جمع کېدل

**ــــ نیول**:- (اَف) اص ، و - خنګره کول

**خنګـــړے**:- (خَ+ن+ګ+ړے) (اَف:پ (قـــاموس) اِس مـــذ وا ج: خنګـــړي) د جولاګانو هغه لرګے چې د کپړے د اوبدلو په وخت ئې استعمالوي

**خنګول**:- (خ+ن+ګ+و+ل) (اَف:پ (قـاموس) مـص مـت) کچـه کـول، بې عزتـه کول، بې آبه کول، شرمَوَل

**خنګونـه**:- (خ+ن+ګ+و+نـه) (اَف:پ (قـاموس) حمـص) کچـه کونـه، بـې عزتـه کونه، بې آبه کونه شرمَوَنه

**خنګووُنکے**:- (خ+ن+ګ+وُو+ن+کے) (اَف:پ (قـاموس) فـاع مـذ وا ج: خنګووُنکي (مؤ : خنګووُنکې) کچـه کووُنکے، بې عزتـه کووُنکے، بې آبـه کـووُنکے، شرمؤنکے، شرمنده کووُنکے

**خنګے**:- (خ+ن+ګے) (اَف:پ (قـاموس) اِس مذ وا ج: خنګي) د وېښـتو کړې، د لومې د دام کړې

**خنګېدل**:- (خ+ن+ګي+د+ل) (اَف:پ (قاموس) مص لا) کچـه کېدل، بې عزتـه کېدل، شرمنده کېدل، بې آبه کېدل

**خنګېدنګ**:- (خ+ن+ګي+د+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خنګېدنه

**خنګېدنه**:- (خ+ن+ګي+د+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) خنګېدنګ، خنګېدۀ، کچه کېدنه، شرمنده کېدنه، بې عزته کېدنه، بې آبه کېدنه

**خنګېـــدوُنکے**:- (خ+ن+ګـــي+دُو+ن+کے) (اَف:پ (قـــاموس) مـــف مـــذ وا ج: خنګېدُونکي مؤ: خنګېـدونکې) کچه کېدونکے، بې عزتـه کېـدونکے، شرمنده کېدونکے، بې آبه کېدُونکے

**خنګېدۀ**:- (خ+ن+کي+ده) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خنګېدنه

**خنه**:- (خ+نه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ وا ج: خنې) د پښو پاکه ولو کاڼے

**خنے**:- (خ+نَے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خني (مؤ خنې) (۱)د غـرۀ منـږک، (۲) ورکوټې خور، یا ورور

**خو**:- (خُ+و) (اَف+ پ) (قاموس اِس مذ) دروغ

**ــــ کول**:-اَف، پ اص دروغ وئیل

**خـو**:- (خُ+و) (اَف: (قـاموس) اِس مـذ وا) (۱)خپـه، اور اخسـتونکي مـاده چې د ځینې ونو او د وُنې پوستکي نه جوړ ولے شي (۲) د ګني یو قسم (۳) یو ټکے چې د لیکن په معني راځي کله کله د استثنا معني هم ورکوي

**خو**:- (خو) (پ) (۱)چه، که، که چرے

خـوکه یار لړه خندا په مینه اوکړي

شمس درد و غم بیا کله ایساریږي (شمس الزمان شمس)

(۲)کمے، نقص ، عیب، (۳) شک

**ــــ په کښې راتلل**:-اص ،(۱) نقصان په کښې پیدا کېدل (۲) شک په کښې راتلل

**خوا**:- (خ+وا) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) اور اخستونکې ماده

**خوا**:- (خ+وا) (پ اِس مؤ) (۱)اړخ، غاړه، طرف، سیمه (۲) زړۀ خاطر آرزو

چې په خوا په خاطر نه هسې عیان شي

ځینې څـــۀ چارے پیدا په دا جهان شي (خوشحال)

(۳)د کر د پاره د ونو نه پاکه شوي مزکه (٤) غېږ

**ــــ اخستل**:-اص ،غېږه اخستل، غېږه چاپېرول، غاړه غتيځ کول

**ــــ بدول**:-اص ، خفه کول، زړۀ بدَول

**ــــ بدېدل**:-اص ، خفه کېدل، زړۀ بدېدل

**ــــ بدي کول**:-اص ، زړۀ بدَول، زړۀ خفه کول

**ــــ پرېښول**:-اص، لرے کېدل، نفرت یا کرکه راتلل

**ــــ پوټه کېدل**:-اص ، زړۀ راډکېدل، لوړه ورکېدل

**په ــــ خاطر**:-اص ،په خیال کښې په زړۀ کښې په ذهن کښې چې په خوا په خاطر نۀ وي راپیدا شي

په لحظه لحظه کښې چارے د تآثیر

**په خوا**:-اص ،نزدې اوړه په اوړه یو بل ته جُخت، غېږه په غېږه

خـــو پـــایم پـه دنیا کښې د چا کار راسره نشته

یو زۀ یم یو دے غم دے سره دواړه خوا په خوا یو (خوشحال)

**خوا په خوا تلل**:-اص ، جوخت او جوړه تلل

**پەخوا کېدل**:-اص ، ډېر نژدې کېدل، مینه زیاتېدل، جختېدل

**ـــ توربدل**:-اص ، زړهٔ توربدل د څهٔ څیز نه زړهٔ مړېدل

بل میئن د دین پەکار وو لەدنیا نەئې خوا توره (خوشحال)

**ـــ تورې کول**:-اص ، زړهٔ تورول، خفه کول

**ـــ تە اچول**:-اص ، ماشوم تې تە اچول

**ـــ تە راتلل**:-اص ، نژدې کېدل، پەمرستە کښې راتلل

**ـــ تـه کېدل**:-اص (۱)د چا سیمه نیول، چا پورې ځان تړل، د یو څیز اشتها لرل، د خوراک څهٔ څیز تە اشتها کېدل

**ـــ تەنهٔ کېدل**:-اص ،لوږه لرل، د خوراک اشتها نهٔ لرل، زړهٔ تە نهٔ کېدل

**ـــ ټولول**:اص ، زړهٔ جمع کول، تسلي کول

**ـــ ډکول**:-اص ، غېږه چاپېرول، تر غاړې باسل

**خواته کېدل**:-اص ، چاته نژدې نژدې کېدل، د چا سیمے تـه کېدل، د چا پناه اخستل

**ـــ سړول**:-اص ، زړهٔ یخه ول، د چا نه بدل اخستل

**ـــ شنه کول**:-اص ، خفه کېدل، دلګیربدل

**ـــ غرول**:-اص ، خواهش کول، زړهٔ کېدل

**ـــ غزېدل**:-اص ، زړهٔ کېدل، خواهش کېدل

**ـــ ګزول**:-اص (۱)کرکه راتلل، نفرت لرل، (۲) قې کېدل، باکې کېدل، کوز کتلے کېدل

**ـــ مړېدل**:-اص ، زړهٔ تودېدل (۲) لوږه ګرځېدل

**ـــ یخول**:-اص ، زړهٔ یخول، د چا نه پەبدل اخستو خوشحالېدل

**ـــ یخېدل**:-اص ، زړهٔ خوشحالېدل، زړهٔ یخېدل

**پەخوا خاطر کښې نهٔ راتلل**:-اص ، هېرېدل، د یادونه وتـل ، پـه خیـال کښې نـهٔ راتلل

**پەخوا کېدل**:-اص ، ملګرے کېدل، پەطرف کېدل، سیمه اخستل

**پەخوا وګرځېدل**:-اص ، (۱)بیمار پرُسې یا پښتنه کول،تپوس کول (۲) پـه زړهٔ هوارول،قانع کول

**خوابدي**:- (خ+وا+بَ+دېي) (پ اس مؤ) خفګان ، زړهٔ بداوے

**ـــ کېدل**:-اص ، غمژن کېدل، خَفه کېدل، ترېوزے راتلل

**خـواپخې**:- (خـوا+پَ+خَې) (اَف:پ (قاموس) اس مـذ) دسـترخوان، څپُـوڼے، کندورے

**خـوا تـوون**:- (خوا+تـو+رَ+ن) (پ اس مـذ )آزرده، خفـه، دلګیـر، زړهٔ بـدے، ناراض

**خواتوري**:- (خ+وا+تو+ر+ي) (پ اس ص مؤ) کرکه، نفرت، زړهٔ توربدل

**خواتپوالي**:- (خ+وا+تې+و+ا+لي) (اُف+ پ (قاموس) اس مـؤ) خـاطر جمعـې، د زړهٔ جمې، اطمنان

**خواتپول**:- (خوا+تپو+ل) (ظفر، پ اس مذ (مؤ وا : خواتپولـه ج: خواتپولي) خاطر جمع، مطمئن

**خواتپولتوب**:- (خ+و+ا+تپو+ل+تو+ب) (اَف:پ (قاموس) اس مـذ ) خـاطر جمعـې، تسلّه، خواتپولتیا، جمعه زړهٔ، خواتپوالي، اطمینان

**خواتپولتیا**:- (خ+و+ا+تپو+ل+ت+یا ) (اَف:پ (قاموس) اس مذ ) و - خواتپولتوب

**خواتپولي**:- (خ+و+ا+تپو+لي) (اَف:پ (قاموس) اس مـؤ) خـاطر جمعـې، اطمینـان، تسلي

**خواجه**:- (خوا+جَه) (فا اس مذ وا ج: خواجګان) سردار، آقا، ج:

اولوالعزم بـه هاله ستا مساوات کا

بندګان که لەخواجګانو محادات کا (سعید خټک)

**خواجه خرز ے**:- (خوا+جَه+خ+رَ+زَ ے) (پ اس مذ ) یو قسم ځنګلي بُوټے

**خواجه خضر**:- (خواجه+خ+ضَ+ر) (فا اس، معرفه، مـذ ) یو پیغمبر چې اصـل نوم او د خاندان حال ئې معلم نهٔ دے، د دوی کار د خلقو مدد کول دي، ځینې خلق ئې پیغمبر نهٔ مني

**خواجـه سـرا**:- (خواجـه+سَ+را+) (فـا، اس، ص، مـذ، وا، ج: خواجـه سـرایان، خواجه سراګان) پخوا زمانه کښې بـه ئې د بادشاهانو پـه محـل کښې کار کولو، او هجړا به وو

**خواخپے**:- (خ+و+ا+چَ+پَے) (پ (ظفر) اس، ص، مذ ) بدنیته، کینه ناک، بد

**خواخپور**:- (خ+وا+خ+پو+ر ) (اَف:پ (قـاموس) اس، مـذ ) دلګیـر، پرېشـان، غمژن، خفه

**ـــ کول**:-اص ، خفه کول، پرېشان کول، دلګیر کول، غمژن نول

**ـــ کېدل**:-اص ، خفه کېدل، پرېشان کېدل، دلګیر کېدل، غمژنېدل

**خواخپورول**:- (خ+وا+خ+پور+و+ل) (پ (ظفر) مص مت) پرېشـانول، خفه کول، دلګیرول

**خواخپورے**:- (خوا+خ+پو+رے ) (اَف:پ (قاموس) اس، ص، مذ ) پرېشـان، خفه، دلګیر

**ـــ کېدل**:-اص ، دلګیره کېدل، خفه کېدل، پرېشانه کېدل

**خواخپـوري**:- (خوا+پـو+ري ) (اَف:پ (قـاموس) اس، مـؤ ) پرېشـانې، دلګیري،خفګان

**ـــ کول**:-اص ، پرېشاني کول، دلګیري کول، خفه کېدل

**خواخوږتوب**:- (خوا+خُو+ږ+توب) (پ (ظفر) اس، مؤ) همدردي، دلسوزي، خواخوږتیا ، خواخوږوالي

**خواخوږتیـا**:- (خوا+خُو+ږ+ت+یـا ) (اَف:پ (قـاموس) اس، مـؤ ) همـدردي، دلسوزي

**خواخوږوالے**:- (خوا+خُـو+ږ+و+ا+لے) (اَف:پ (قـاموس) اس، مـذ ) و- د خـوا خوږتوب

**خواخوږي**:- (خوا+خُو+ږ+ي) (اَف:پ (قاموس) اس، مؤ) همدردي ، دلسوزي، زړهٔ سوے

**خواخوږي**:- (خوا+خُو+کې ) (اَف:پ (قاموس) اس، ص، مـذ، وا، ج: خواخوږي ) همدرد ، پەغم شریک، دلسوز

**خواخوښې**:- (خوا+خ+وَ+ښې) (اَف:پ (قاموس) ص، مـؤ) خوښـه، رضـامندي، مرضي

**ـــ کېدل**:- اص ، زړهٔ کېدل، لوږه راتلل

**ـــ نیول**:-اص، (۱)لمن نیول، چاته جولۍ کښې ځان اچول (۲) لاره نیول

**خواخوښـــے**:- (خوا+خ+و+ښَـــے ) (اَف:پ (قـــاموس) اس، ص، مـــذ، وا، ج: خواخوښې) خوښ، رضامند، خوشحال

**خوار**:- (خوا+ر) (پ (ب،خ) اس، مذ )ګیا ، وابنهٔ،

**خوار**:- (خ+وا+ر) (پ، اس، ص، مذ، وا، ج: خواران) عاجز، غریب، تپ

تهٔ چې پرې اعتبار کړې ځان بەخوار کړې داسې مه کوه

ژاړې بـــه پـــه ســـرو ســـترګو صبا زړګیه اومنه (شمس)

**خـــوارپړک**:- (خـــوار+پَ+ړَ+ک) (پ، اس، ص، مـــذ (مـــؤ: وا خوارپړکـــه ج: خوارپړکي) ډېر خوار، ډېر عاجز، زیات غریب

**خوار ځواکتوب**:- (خوار+وز+وا+ک+تو+ب) (اَف:پ (قاموس) ا، مذ ) تنګسـیا، غرئبي، خوار ځواکي، نیستي

**خوارځـواکي**:- (خـوار+دز+وا+کي) (اَف:پ (قـاموس) ص ) غریبـي، ضـعیفي، تنګسیا، نیستي

**خوارځواکے**:- (خوار+دز+وا+کے) (پ (ظفر) اس، ص، مـذ ) غریب، مفلس، بې وسه، نیست من

**خورحېران**:- (خوار+حَې+را+ن) (پ، اس،ص، مذ) په بد حال، پرېشان

خـــوار حـــيران لکه عاشق دے ستا له دردَ
خداے دے نهٔ کا هسې هېڅوک خوارحيران (رحمن)

**خواخاطر**:- (خوار+خا+طِ+ر) (پ اس، ص، مذ) (۱)پرېشان زړهٔ، خفه زړهٔ (۲) بد قسمته

**خوار خسته**:- (خوار+خَ+س+تَـه) (پ، اس ،ص) پـه بـد حـال، خوار زار، خوار غريب، خوار فقير

غل چوغل پرول رقيب وُسوم حبيبَ
غمزه خوارخسته پروت يم له ترابَ (بېدل)

**خوارخيچن**:- (خوار+خي+چَ+ن) (پ، اس، ص، مذ) ګنده، ناولے

ما د فضل په صابون سره بنهٔ سپين کړه
سيه رنـــګه خـوار خيچن يم زما ربَ (بېدل)

**خوار وزار**:- (خوا+رو+زا+ر) (پ، اس، ص، مذ) و - خوار خسته

هر چې نهٔ وي خوار وزار
پـــه طلب د خپل دلـدار (رحمن)

**خوار غريب**:- (خوار+غَ+ري+ب) (پ، اس ص، مذ) و - خوار خسته

**خوار فقير**:- (خوار+فَ+قي+ر) (پ، اس، ص، مذ) و - خوارخسته

که مېلمه ئې خوار فقير زما د روغ شه
پـه اوله شپه ئې کړهٔ دغه مهان وريت (بېدل)

**خـوار کوټے**:- (خوار+ګـو+ټے) (اَف:پ (قـاموس) اس، ص، مـذ) ډېـر غريـب، عاجز، نېست من، خوار پړک

**خوارکے**:- (خوا+ر+کے) (اَف:پ (قاموس) مذ، وا، ج: خوارکي) عاجز، غريب

**خوارول**:- (خـوا+ر+و+ل) (پ، مص، مت) عـاجز کـول، غريب کـول، کمزورے کول

**خوارونه**:- (خوا+ر+و+نه) (پ ، حمص) (۱)غريبونه، عاجز کونه، نيستمن کونه (۳) ډېر په تکليف کنبې اچونه

**خوارووُنکے**:- (خوا+ر+وُو+ن+کے) (پ، اس فا، مذ، وا، ج: خـوارووُنکي) عـاجز کووُنکے، غريب کووُنکے، نيستمَن کووُنکے

**خوارهٔ**:- (خوا+ر+هٔ) (پ،پ) مذ) پرېشان، وېر پېر

**ـــ کول**:-اص (۱)پرېشانول، وېرپېر کول (۲) شيندل

**ـــ کېدل**:-اص (۱)پرېشانه کېدل، وېر پېر کېدل (۲) شيندلے کېدل

**خواره خواري**:- (خوا+رَه+خوا+ري) (پ،ص، مؤ) غريبي، عـاجزي، بد حالي ـ

لکه: خواره خواري د جهنګي د ملنګي ده (متل)

**خـوارهٔ وارهٔ**:- (خـوا+ر+ه+وا+ره) (پ، ص) ګـډ وډ، پرېشـانه، وېـر پيـر، اخـوا ديخوا

**خواره وارهٔ کول**:-اص،ګډ وډ کول، پرېشانه کول، وېر پېر کول، اخوا ديخوا

**ـــ کېدل**:-اص ، ګډوډ کېدل، پرېشانه کېدل، وېر پر کېدل

**خواري**:- (خوا+ري) (پ، اس، مؤ، وا، ج: خواريَ) (۱)غريبي، لاچاري

بې هجرانه زما بله خواري نشته
ولے نشته تـــر دا بله خواري نوره (رحمن بابا)

(۲)زيار، کړاؤ، محنت، مزدوري

چې محنت پــــه ځان قبول کا راحت مومي
خداے دے نهٔ کاندي خواري د هېچا ورکه (خوشحال خان)

**ـــ بدي**:-اص ،محنت، مزدوري

**خواري بدي**:-اص ، محنت مذدوري، کړاووُنه

کــه لـــه کورَ توشه نهٔ واخلي غريب
په خوارئ بدي به مومي خپل نصيب (خوشحال خان)

**ـــ پېڅل**:-اص ، تکليف تېرول، کړاؤ زغمل

**ـــ پېښېدل**:-اص ، څهٔ کړاؤ يا تکليف پېښېدل

**ـــ تېرول**:-اص ، غريب تېرول، په لاچارئ کښې شپې ورځې تېرول، زيار کړاؤ کول

**ـــ کول**:-اص ، تکليف کول، محنت کول، ځان کړول

**ـــ ليدل**:-اص ، زحمت ليدل، تکليف ليدل، په خوارئ کښې ګېرېدل

**ـــ نانډري**:-اص (ب،خ) منت زاري سوال زاري

**ـــ وړل**:-اص ، زحمت وړل، تکليف تېرول

**په خوارئ اوړېدل**:-اص ،په زحمت کې ګېرېدل، په تکليف کښې ننبتل

**په خوارئ خوار**:-اص ، ډېر غريب

هېڅ راحت پرې بنا ے نشته بې عذابه
دم پــه دم په خورئ خوار په خوئ رټلے (مرزا خان انصاري)

**په خوارئ زارئ**:-اص ، په منتونو ، په تکليفونو، په کړاؤنو

**پـه خوارئ ګګړېـدل**:-اص ، پـه غربـې او مفلسـئ اوړېـدل، پـه لاچـارئ کښـې ګېرېدل، ډېر غريب کېدل

**په خواره کورئ کښې**:-اص ، په غرئبي کښې، په تنګسيا کښې

**خوارېـــدل**:- (خـوا+رې+دل) (پ، مـص، لا) (۱)غريـب او لاچـار کېـدل، (۲) کمزورے او تېپېدل، مانده کېدل (۳) په تکليف کښې ګېرېدل

**خوارېدنګ**:- (خوا+رې+دنګ) (حمص اَف (قاموس)) و - خوارېدنه

**خوارېدنــه**:- (خوا+رې+دَ+نـه) (اَف:پ (قـاموس) حمـص) (۱)غريـب کېدنـه، خوارېدنګ (۲) په تکليف ګېرېدنه

**خوارېدُونکے**:- (خوا+رې+دُو+ن+کے) (پ، مف، مذ، وا، ج: (خوارېدوُنکي) مؤ خوارېدونکي) (۱)عاجز کېدونکے (۲) مانده کېدونکے، تېپېدوُنکے

**خواري کښ**:- (خوا+رې+کَ+خ يا کَ+ش) (پ، اس، فا، مذ، مؤ: خواري کښه ج: خواري کښې) زحمت اوچتووُنکے، مزدور

**خواري کښي**:- (خوا+رې+کښې) (اس،ص،مؤ) محنت، زيار، کړاؤ، مزدوري

**خواري کښي کول**:-اص ، زيار کړاؤ کول، محنت کول، مزدوري کول

**خـواړه**:- (خـوا+ړ+هٔ) (پ، اس –جمـع) خوارکونـه، طعامونـه، د خوړلـو څيزونـه، خوارک

هلته مرګ به دے په زړهٔ شي
درتــــه زهــر به خواړهٔ شي (عبدالرحيم مجذوب)

**درنګه خـوړل کېـدل**:- اص (اَف ، پ) د خپـل رنـګ لـه کبلـه خوارک تـه د خوړلو زړهٔ کېدل

**خـوازهٔ**:- (خوا+زَ+ه) (پ، اس، مؤ، وا، ج: خـوازي) هغـه ځانګـه چې پـه مزکـه غذېدلي وي او تر لړے پورې تلي وي

**خـواږه**:- (خـوا+ګ+ه يـا ژ+ هٔ) (پ، اس، ج، مـذ، وا: خـوږ) (۱)شـيريني، متيـائې (۲) خوږښ او زړهٔ ته نژدې

لکه: د خپـل لاس کارهٔ وارهٔ د هر چا نه خوارهٔ (متل)

**خوارهٔ تراخهٔ**:-اص ، ښهٔ او بد

شمس په غمونو کښې مې هېڅوک پکارېږي نه
خپل دغه خوارهٔ تراخهٔ شعرونه مې ملګري دي

**خـــوارهٔ لُـوړي**:- (خوا+رِهٔ+لُـو+ړَي) (پ، اس، مـذ، ج: (خــوارهِ لُـوړي) خـوارهٔ خوارکونه خوښوُنکے، خوارهٔ خوړوُنکے

**خواره ولني**:- (خوا+رهٔ+و+ل+نې) (اَف:پ (قاموس) اس، ج) کارهٔ، سونف (اردو) يو قسم تخم چې د ګېډے او معدے د درد د پاره ښهٔ وي

**خواس**:- (خ+وا+س) (اَف:پ (قاموس) اس، مذ) کبر، لُوئي، بډائي، غرور

**خواســـت**:- (خـوا+س+ت) (اَف:پ (قـاموس) اس، مـذ، وا ،ج: (خواسـتونه)

(۱)سوال، غوښتنه، (۲) زاري، منّت

صبح وشام مې لاس ونیولي دي دُعا کړم
خواست له خدایه ستا د مهر او د وفا کړم (رحمن بابا)

ــــ **کول**:-اص ، (۱)سوال کول، غوښتل

په ژړا مې ځنې خواست د سپینې خولې کړ
پــــه خنــدا ئې وے چې څهٔ کا دا سړے (خوشحال)

(۲)زاري کول، منت کول

**بې خواستَ**:-اص ، بې منته، بې زارۍ

**په خواست**:-اص ، په سوال، په منت، په زارۍ

**خواســـتغتوب**:- (خوا+س+تَ+غ+تــو+ب) (اَف:پ (قــاموس) اِس، مــذ ) اُوږ سترګتوب، اوږ سترګې، اروا اوږتوب

**خواستغي**:- (خوا+س+تَ+غي) (اَف:پ (قـاموس) اِس، مـذ، وا ) اوږ سـترګي، اوږ سترګ توب، اروا وږي

**خواستغے**:- (خواَ+س+تَ+غَے ) (اَف:پ (قـاموس) اِس، مـذ، وا ، ج: خواسـتغي مؤ (خواستغې) اوږ سترګے، اَروا وږے

**خواستګار**:- (خواس+ت+ګا+ر) (فا، اِس فاع، مذ، وا ، ج: خواستګاران (مؤ وا: خواستګاره ج: خواستګاري ) سوالي، عاجز، غوښتُونکے

**خواستي**:- (خوا+س+تي ) (پ اِس مؤ، وا ، ج : خواستۍ ) خواست، منت، زاري

**خواشیني**:- (خوا+شي+نِي ) (پ، اِس، مؤ، وا ، ج: خواشینۍ ) غم، خفګان

**خواشینے** :- (خوا+شي+نَے ) (پ، اِس، مذ، وا ) خفه، غمژن، ترپوړزے

ــــ **کول**:-اص ، خفه کول، غمژن کول، ترپوزے راوستل، خاطر بدول

ــــ **کېدل**:-اص، خفه کېدل، ناراضه کېدل

**خواښې**:- (خواَ+خې یا شي ) (پ، اِس مؤ، وا ، ج: (خواښیانې ) د تېر مور یا د خاوند مور

**خواښے تــوب**:- (خوا+خې+شــې+تو+ب) (پ، ص، مـذ ) خواښــې والـے، خواښـې جوړېدنه

**خواښے والے**:- (خوا+شي+یا خي+وا+لے ) (پ، ص ، مذ ) و - خواښې توب

**خواګرځن**:- (خوا+ګـَ+ر+دز+ن ) (اَف:پ (قاموس) اِس، مـذ ، وا ، ج: خواګرځني ) هغه څیز چې طبع درنوي، زړهٔ راړ کوونکے، قے وروستونکے

**خواګرځول**:- (خوا+ګـَ+ر+د+ز+و+ل) (اَف:پ (قـاموس) مـص، مـت) قـے کـول، باکۍ کول، کوز کتل، زړهٔ توروَل

**خواګرځي**:- (خوا+ګـَ+ر+د+زي ) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ ) قے ، باکۍ

**خواګرځېدل**:- (خوا+ګـَ+ر+د+زي+دل) (پ، مص، لا) زړهٔ تورېدل، بـاکۍ کول، قے کول

**خوا ګرځېدهٔ**:- (خوا+ګـَ+ر+د+زي+دهٔ ) (پ، حمص ) زړهٔ راړ کېدل، قے راتلل

**خواګے / ږ**:- (خوا+ګې) (پ، اِس، مـذ ) (۱)خواخوږے، طرفـدار، پټ ملګـرے (۲)بلورو د ولیے یو قسم چې د ملګري د پاره خپله بلوري پټه کښېږ دي

ــــ **اچول**:-اص (۱)د ملګري د پـاره خپلـه بلورۍ پټه کښېښـول (۲) مقصـد پټ ساتل

**خوال**:- (خَ+وا+ل) (اَف:پ (قاموس) اِس،مذ ، وا ) و - خاوال

**خوالو**:- (خوا+لُو ) (اَف:پ (قاموس) ص) د راز ملګـرے، راز داره

**خواله**:- (خوا+له) (اَف:پ (قاموس) ص ) همدردي، د زړهٔ راز، پټه خبره

ــــ **ساتل**:-اص ، راز پټ ساتل

ــــ **کول**:-اص ، همدردي کول، راز پټ ساتل، خوالهٔ ساتل

**خواله وئیل**:-اص ، پټه خبره څرګنده ول

**خواله ساتي**:- (خواله+سا+تي ) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ ) راز دار

**خوالے**:- (خوا+لَے) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ ) په راز خبر، هم راز

**خــوان**:- (خــوا+ن) (فــا ، اِس، مــذ ، وا ، ج: خوانونــه ) مجمــه،پتنوس، څپــوټے، کندُورے

دا فلک به چا ته هسې خوان کښې نهٔ ږدي
چې لـــه پـــاسه ئې پـــه لتو پرې پلن نهٔ کا (علي خان)

**خواناے**:- (خوا+نا+ے) (پ (وز) اِس، مذ ) خونَے (ګن) خورنے ، د وادهٔ شېریني

**خوانچه**:- (خوان+چَه ) (فا ، اِس، مؤ، وا ، ج: خوانچې ) ورکوټے پتنوس

**خــواهش**:- (خــوا+ه+ش) (فــا ، اِس، مـذ ، وا ، ج: خواهشُــونه ) مرضــي، ارمـان، مُراد ، د زړهٔ غوښتنه

ــــ **پوره کول**:-اص ، ارامان پوره کول، خواهش تر سره کـول، د زړهٔ مـراد پـوره کول

ــــ **پوره کېدل**:-اص ،ارمـان پـوره کېـدل، خواهش تر سره کېـدل، د زړهٔ ارمـان پوره کېدل

ــــ **تر سره کول**:-اص ، و - خواهش پوره کول

ــــ **تر سره کېدل**:-اص ، و - خواهش پوره کېدل

ــــ **څرګنده ول**:-اص ، خواهش ښکاره کول

ــــ **سرته رسول**:-اص ، ارمان پوره کول

ــــ **ښکاره کول**:-اص، و - خواهش څرګنده ول

ــــ **کول**:-اص زړهٔ غوښتل، خواهش لرل

ــــ **لرل**:-اص ، و - خواهش کول

**خوب**:- (خو+ب ) (پ، اِس، مذ، وا ، ج: خوبُونه ) اودهٔ کېدنه

د رقیب له جــوره خوب د عاشق نهٔ شي
هغو چې یار دښمن وي څهٔ به خوب کا (رحمن بابا)

ــــ**اخستے**:-اص (۱)چې خوب ورغلے وي (۲)چې په خوب کښې ګرځي

ــــ**اورسکور کول**:-اص ، ښوک د بنهٔ خوب نه را ببدارول، د خوبولي سره نزدې شور ذوږ کول، خوب تالاکول، خوب حرام کول

ــــ **اور سکور کېدل**:-اص ، د چا د ښهٔ خوب نه را ببـدا ربـدل، د خوبـولي سره نزدې شور ذوږ کېدل، خوب تالاکېدل، خوب حرام کېدل

ــــ **پرېشانه کېدل**:-اص ، چا ته کوب نهٔ ورتلل، خوب خرابېدل

ــــ **په مېږتُون**:-اص ، بې قراره خوب

ــــ **تالا کول**:-اص و - خوب اور سکور کول

ــــ **تالاکېدل**:-اص، و - خوب اور سکور کېدل

ــــ **تښتول**:-اص (۱)په څهٔ خبره فکر مند کول، بې خوبه کول، خوب وړل

پــــه رو رو ئې تښتولــه ځانه خوب
په نیا نیاز خبرې کړے د لیونتوب (مُلانعمت الله)

(۲)یَرول، ډارول

ــــ **تښتېدل**:-اص (۱)پـه څـهٔ خبـره فکرمنـد کېـدل، بـې خوبـه کېـدل، خـوب ورکېدل

لـــکه تښتي وحشیان له مـرد مانو
هسې وتښتېدو خوب زما د سترګو (رحمن بابا)

(۲)په هوش راتلل (۲) یرېدل، ډارېدل

ــــ **ته بېږي ورکول**:-اص ، د خوبولي کېدو کوښښ کول، د خوب ګولۍ خوړل، پـه زانګو کښـې د خوب راوسـتو د پـاره زانګول، د مـور بچـې تـه اللّهـو وئیل

ــــ **ته نهٔ پرېښودل**:-اص ، بې آرامه کول، شور زوږ کول، د غمونو زیاتېدل

ــــ **ځپلـې ځپځلـې**:-اص ، د خوبـه ډکـې سـترګې چـې خـوب پـرې غـالـب کېدوُنکے وي

ــــ **ځنګـول**:-اص، خـوب ورتلـل، د خوبـه جُوتے خـوړل، سـترګے پـتے پـتے

کېدل، خو وړل
ــــ **حرام کول**:-اص ، و- خوب اور سکور کول
ــــ **حرام کېدل**:-اص ، و- خوب اور سکور کېدل
ــــ **خرابول**:-اص ، د خوبه راويښول، بې آرامه کول
ــــ **خرابېدل**:-اص ، د خوبه راويښېدل، بې آرامه کېدل
ــــ **خندا**:-اص ، خوب او خوشحالي، آرام
خوب خندا په بې غمي کېږي رحمنَ
هر چې تا غوندې غمژن وي څۀ به خوب کَ
ــــ **وړل**:-اص ، ډېر خوب ورتلل، سترګې پټې پټې کېدل
ــــ **راتلل**:-اص ، خوبولے کېدل، اُودۀ کېدل
نۀ مې قرار شته دے نۀ يار شته دے نۀ شپه تېرېږي
نۀ خوب راځي نۀ ته راځې بس شوګيره تېرېږي (شمس الزمان شمس)
ــــ **رښتيا کېدل**:-اص (۱)په خوب کښې ليدلے واقعه په عملي ډول پېښېدل (۲)په ذهن کښې راغلے خبره رښتيا کېدل
ــــ **کچرېدل**:-اص، د خوب تښتېدل، خوب نۀ ورتلل
ــــ **کول**:-اص (۱)اُودۀ کېدل، آرام کول (۲)بې غمه کېدل
ــــ **کېدل**:-اص (۱)اودۀ کېدل (۲) څۀ خبره په عملي ډول نۀ پوره کېدل
ــــ **ګڼل**:-اص ، خوب شمارل، په څۀ خبره اعتبار نۀ راتلل، د چا په ناڅاپي راتلو حيرانېدل
ــــ **ليدل**:-اص ، (۱)په اودۀ حالت کښې څۀ واقعه ليدل رؤيا ليدل (۲)د لږ وخت د پاره د چا راپېښېدل (۳)نۀ پوره کېدونکے خواهش کول
ــــ **ورتلل**:-اص ، و- خوب ځنګول
ــــ **ورته وړل**:-اص ،حيرانېدل
ــــ **ورکېدل**:-اص ، و- خوب تښتېدل
ــــ **وړل**:-اص ، (۱)و - خوب تښتول (۲)و - خوب ځنګول
ــــ **وړے**:-اص ، خوبولے ،اودۀ شوے
د دُنيا هوا هوس د خوب ليدۀ دي
چې خوب وړے شي راويښ نۀ وي بيا هې" (حميد)
**بې خوبه کېدل**:-اص ، بې آرامه کېدل، خوب نۀ ورتلل
**بې خوبي**:-اص ، بې آرامي
**پرېشان خوب**:-اص ، (۱)کچه خوب، چې غرق خوب نۀ وي (۲)خفه کوونکے رؤيا
**په ازغو خوب**:-اص ، بې آرامه خوب، د تکليف اودۀ کېدۀ، د غمونو نه ډک حالت
**په چپو خوب کول**:-اص ، ډېر غرق کوب کول
**په خواږه خوب اودۀ کېدل**:-اص (۱)په ډېر ښۀ خوب اودۀ کېدل (۲)بې غمه کېدل، بې غمئ خوب کول
**په خوب**:-اص (۱)اودۀ (۲) په خيال
**په خوب اُودۀ**:اص ، (۱)خوبولے (۲)بې غمه
**په خوب اودۀ کول**:-اص ، (۱)ماشوم قلارول (۲) دوکه کول (۳) مړ کول
**په خوب پسې سترګې رندېدل**:-اص ، د خوب زيات ارمان کول
**په خوب ټپېر يخول**:-اص ، (۱)ښۀ غرق خوب کول، د خوب کمې پوره کول، د بې فکرئ او بې غمئ خوب کول (۲)بې کاره وخت تېرول
**په خوب ټپېر يخېدل**:-اص ،(۱)ښۀ غرق خوب کښې اودۀ کېدل، د خوب کمې پوره کېدل، د بې فکرئ او بې غمئ خوب کېدل (۲)بې کاره وخت تېرېدل

**په خوب کښې** :-اص (۱)په اُودو (۲) په خيال کښې
**په خوب کښې الوتل**:-اص ،په خوب کښې په هوا تلل، د خوشحالئ خوب ليدل
**په خوب کښې بوړنېدل**:-اص ، په خوب کښې ټوپ وهل، په خوب کښې يرېدل، په خوب کښې بېرېدل، په خوب کښې ډارېدل، په خوب کښې ګروهېدل
**په خوب کښې بېرېدل**:-اص ، و - په خوب کښې بوړنېدل
**په خوب کښې پاڅېدل**:-اص ، په خوب کښې را ولاړېدل، په خوب کښې تلل
**په خوب کښې خبرې کول**:-اص ، په اُودو خبرې کول، په خوب کښې د ځان سره ژغېدل
**په خوب کښې خرړېدل**:-اص ، په خوب کښې د خړا اواز ايستل
**په خوب کښې ډارېدل**:-اص ، و - په خوب کښې بوړنېدل
**په خوب کښې راتلل**:-اص ، څوک په خوب کښې ليدل، په خوب کښې راحضور کېدل
**په خوب کښې راحضور کېدل**:-اص ، و - په خوب کښې راتلل
**په خوب کښې رالاندې کېدل**:-اص ، د خوب په حالت کښې د چا دښمن د لاسه راګېرېدل
**په خوب کښې ژړل**:-اص ،په اُودو ژړل، په خوب کښې فرياد کول، په خوب کښې څۀ د غم حالت ليدل
**په خوب کښې غاښونه چيچل**: -اص په اُودو د غاښونو اواز ويستل، غاښونه کرنجول
**په خوب کښې ګروهېدل**:-اص ، و - په خوب کښې لوړنېدل
**په خوب کښې لګيا کېدل**:-اص ، په خوب کښې خبرې کول
**په خوب کښې لوپېدل**:-اص ، په خوب کښې د کټه راپرېوتل
**په خوب کښې ليدل**:-اص ، (۱)په اُودو ليدل (۲) په خيال کښې ليدل
**په خوب کښې مانۍ جوړول**:-اص ، د نۀ کېدوُنکي کار خواهش کول
**په خوب کښې هم نۀ ليدل**:-اص ، بېخي نۀ ليدل
**په خوب کښې يرېدل**:-اص ، و - په خوب کښې بُوړنېدل
**په خوب ګډېلدل**:-اس ،اُوده کېدل
**په خوب مړ**:-اص، د خوب شوقين، هغه څوک چې هر وخت اُوده وي
**په خوب مړ کېدل**:-اص ، په خوب پسې سترګې رندېدل، د خوب زيات ارمان کول
**په خوب مړېدل**:-اص ، پوره خوب کول، د خوب کمې پوره کول
**په خوب ورتلل**:-اص (۱)سترګې پټېدل، اودۀ کېدل (۲)چاته په خوب کښې حاضرېدل
**په سترګو کښې خوب غړېدل**:-اص ، خوب ورتلل، د خوب زور زياتېدل، د خوبه سترګې پټېدل
**په سترګو کښې خوب کېدل**:-اص ، د چا په ليدو زړۀ ته آرام رسېدل لکه:
راشه په سترګو کښې مې خوب شۀ
زۀ شوګيرو د بېلتانه وهلے يمه!
**په سروټکو خوب**:-اص ، د بې ارامئ خوب بې قلاره خوب
**په ښخ خوب اُودۀ**:-اص ،په خواږۀ خوب اُودۀ، غرق خوبولے په غرق خوب اُوده
**په غرق خوب اُوده**:اص ، و - په ښخ خوب اُوده
**په غنو خوب**:-اص ، بې آرامه خوب، بې قلاره خوب
**په ويښه خوب ليدل**:-اص ، د څۀ نۀ کېدوُنکي کار خواهش لرل
**تش خوبونه**:-اص (۱)بې مقصده خونه (۲) نۀ تر سره کېدوُنکي خواهشونه
**خوبوُنه ليدل**:-اص ، خواهش لرل، اُمېدونه لرل
**خوشي خوبونه** :-اص ، بې مطلبه خواهشونه، تش خوبونه
**دا خوبونه مه وينه**:-اص، د کار د کېدو نۀ دے، داسې سوچُونه او فکرونه

مه کوه

**د خوب بوجۍ**: -اِص، د ډېر خوب شوقين، په خوب نهٔ مړېدونکے، د خوب گوډے

**د خوب تنبنتېدل**: -اِص ، بې خوبه کېدل، بې ارامه کېدل

**د خوب تعبير**: -اِص ، د خوب معني، د خوب حقيقت

**د خوب ټالې ورکول**: -اِص ، د خوب زور کول، د خوب د لاسه جُوتېږ وهل

**د خوب جُوټه/څپه**: -اِص ، د خوب حمله، د خوب څپه

**د خوب حال وئيل**: -اِص ، د ليدلي خوب بيان کول، په خوب کښې ليدلے واقعه ښکاره کول

**د خوب خوند اخستل**: -اِص ، ښهٔ خوب کول، بې فکره اوده کيدل، په خوب ځان مړول

**د خوب دُنيا**: -اِص ، د خيالونو دُنيا

**د خوب ډکې سترگې**: -اِص ، خوبولے، څوک په داسې حالت کښې چې خوب ئې ځنگوي

**د خوب غلبه کېدل**: -اِص ، خوب زور ورکېدل، خوب راتلل، ډېر خوب ځنگول

**د خوب کاته**: -اِص (۱) رويا ليدل، (۲) څهٔ څيز د لږ وخت د پاره ليدل (۳) هسې خيال راتلل، د خوب ليدهٔ

**د خوب گوډې**: -اِص ، و - د خوب بوجۍ

**د خوب ليدهٔ**: -اِص ، و - د خوب کاتهٔ

**د خوب معني**: -اِص ، و - د خوب تعبير

**د خوب نشه**: -اِص ، د خوب اثر، د خوب خوند

**د خوبونو په ارمان**: -اِص ، د آرام په ارمان، دَ اُوده کېدو په ارمان، ډېر بې آرامه

په قسمت مې شوگيرے دي د خوبونو په ارمان يم
پـــه تـــيرو کښې لتـــومه ياره ستا مهينے ليچې (شمس الزمان)

**د خوبونو دُنيا**: -اِص ، خيالي دُنيا، تش خواهشونه

**د خوبه**: -اِص ، په نيم خوب کښې داسې حالت چې بنيادم پوره راويښ شوے نهٔ وي

**د خوبه بيدارېدل**: -اِص، (۱) د خوبه پاڅېدل، راويښېدل (۲) د څهٔ خبرې نه خبرېدل، د خوبه رالړزېدل

**د خوبه پاڅېدل**: -اِص ، و - د خوبه بيدارېدل

**د خوبه رالړزېدل**: -اِص ، (۱) ناڅاپي د خوبه راويښېدل (۲) د څهٔ خبرې خبرېدل

**د خوبه وتل**: -اِص (۱) بې ارامه کېدل (۲) مئين کېدل

**د خوبه ويستل**: -اِص (۱) بې ارامه کول، خوب ته نهٔ پرېښول (۲) د چا دمينې غمونه کول

**د خوبه ويښول**: -اِص (۱) خوب نه بېدارول، پاڅول (۲) په څهٔ خبره خبرول

**د خوبه ويښېدل**: -اِص (۱) خوبه نه بيدارېدل، راپاڅېدل (۲) په څهٔ خبره خبرېدل

**د غفلت په خوب اُودهٔ**: -اِص (۱) نا خبره، د دُنيا جهان نه غافل (۲) د آخرت نه بې پروا

**د غم پـه خـوب اُودهٔ**: -اِص (۱) د ډېرے ناقلارتيا او خفگان نه پس چې د چا سترگې اولگي (۲) په داسې خوب اُوده چې څهٔ نقصان په کښې اومومي

**د مرگ په خوب اُدهٔ کېدل**: -اِص ، مړکېدل، د مرگ په خوب بېدېدل

**د مرگ په خوب بېدېدل**: -اِص ، و - د مرگ په خوب اودهٔ کېدل

**رښتني خوب**: -اِص ، حقيقي خوب داسې خوب چې تعبير ئې رښتيا اُوځي

**سترگېد خوبه درنېدل**: -اِص ، خوب ځنگول خوب ورتلل

**شيرين خوب**: -اِص ، خوږ خوب، ښهٔ خوب

**کچـه خـوب**: -اِص ، (۱) نيمگړے خوب، چې پوره اودهٔ شوے نهٔ وي (۲) په معمولي ښکالو ويښېدل

**گـډوډ خوبونـه ليـدل**: -اِص (۱) پرېشـانه خوبـه ليـدل (۲) د څـهٔ واقعـې نـه وړانـدې اشوبشې پېدا کېدل

**لګه د خوب يادېدل**: -اِص ، ايله يادېدل

**خوبا**: - (خُو+با) (پ، اِس، مؤ، وا، ج: خوبان) معشوقه

که وارهٔ خزنې د شاهجهان بادشاه زما شي
همه وارې به زهٔ پـــــه يوه خال د خوبا ورکړم (خوشحال)

دا خو مې اشنا دے چې د گل غوندې نازک دے
نـــهٔ پـــوهېږم نور داسې خـوبـــان بـــه چېرته وي (شمس الزمان)

**خُوبانۍ**: - (خُو+با+نۍ) (پ ، اِس، مؤ) خرمانۍ، مندته، خربانۍ

**خوبائې**: - (خُو+با+ئي) (اَف:پ (قاموس) ص) ښهٔ والے، ښهٔ توب، خوبې، غوره توب

**خوبائې تـوب**: - (خُوبـائي+تو+ب) (اَف:پ (قـاموس) اِس، ص، مذ) (۱) ښـهٔ والے غوره توب (۲) د ځوانۍ وخت

**خوبجن**: - (خوب+جَ+ن) (پ، اِس،ص،مذ (مؤ وا: خوبجنه ج: خوبجني) خوبن، خوبې، هغه څوک چې ډېر خوب ورځي

**خوبن**: -(خو+بَ+ن) (پ،اِس، ص،مذ) و - خوبجن

**خـوب نمـري**: - (خـوب ن+م+رِي) (پ،اِس،ص ج) (پ،اِس،ص، ج) د خـوب جامې، داودهٔ کېدو کالي

**خوبے**: - (خو+ بے) (پ،اِس ص مذ) و - خوبجن

**خوبياولے**: - (خوب+يا+و+لے) (پ، اِس، ص، مذ) (۱) اُودهٔ (۲) بې پروا

**خُوپ**: - (خُو+پ) (پ اِس، مذ) د هوا د بندېدلو او د وريځو د خورېدلو په وجه جوړه شوے گرمي، حبس، دُوپ

**خوپړه**: - (خُوپ+ړَه) (پ، اِس، مؤ) خُوپ، ډېره گرمې، دُوپ

**خُوپنه**: - (خُو+پَ+ن+ړَه) (پ، اِس، مؤ) بريوکۍ، د گردنه ډکې سيلۍ، د پېريانو ډولۍ

**خُوټ**: - (خُو+ټ) (پ، اِس،مذ) جوش، خُوټکا، د کټوۍ يا د دېگ جوش

**ـــــ کول**: -اِص ،جوش کول

**خوټ باد**: - (خُوټ+با+د) (پ، اِس، مذ) د خوټو د ډډېدو بيماري

**خُـوټ خوټـاـے**: - (خُـوټ +خُو+ټـا+ے) (پ، اِس،مـذ،وا،ج: خـوټ خـوټې) د يشېدلو پرله پسې اواز خُوټکے، خُوټکا، خُوټهار

**ـــــ ختل**: -اِص ، د خوټ خوټ اواز راتلل، د يشېدلو اواز پورته کېدل

**ـــــ کول**: -اِص، خوټ خوټ کول، د يشېدلو اواز کول، خوټکے کول

**ـــــ کېدل**: -اِص ،خوټ خوټ کېدل، د يشېدلو اواز کېدل

**خـوټ خـوټې**: - (خُوټ+خـو+ټې) (اَف:پ (قـاموس) اِس، مـؤ) د ماشـومانو يـوه لوبه

**خُوټکا**: - (خُوټ+کا) (پ، اِس،مذ) و - خُوټ خوټاے

**خُـوټ کښن**: - (خُـوټ+ک+ش يـا خ) (اَف:پ (قاموس)اِس،مـذ، وا، ج: خُـوټ کښان) غټ چيندخ

**خُوټکول**: - (خُوټ+کَ+و+ل) (پ،مص،مت) يشول، جوش ورکول

**خُوټکونه**: - (خوټ+کَ+و+نه) (پ، حمص) يشونه، جوش ورکونه

**خـوټ کوُونکے**: - (خُـوټ+کَ+وُو+ن+ کـے) (پ، اِس،فـا، مـذ، وا، ج: خـوټ کوونُکي مؤ: خُوټ کوونکې) يشوونُکے، جوش ورکوونُکے

**خـوټکې**: - (خُوټ+کَ+ئي) (اَف:پ (قـاموس) اِس،مـؤ) پـه دېگ کښې لږ څـهٔ پخلې

**خُوټکے**: - (خُوټ:کَے) (پ، اِس،مذ) و - خوټ خوټاے

**ـــــ کول**: -اِص ، و - خُوټ خوټاے کول

**خوټکېـدل**: - (خُوټ+کې+د+ل) (پ،مص،لا) (۱) يشـېدل، خُوټ خوټـائې کـول،

خوټېدل (۲)زيات غصّه کېدل

**خوټکېدلے**:- (خُوټ+کې+د+لے) (پ،مف،مذ،وا، ج: خُوټکېدلي مؤ: خوټکېدلې) خوټېدلے، يشېدلے، په جوش راغلے

**خُوټکېدنه**:- (خُوټ+کې+د+نه) (پ، حمص) (۱)يشېدنه، خوټېدنه، خوټېدۀ (۲)زيات غصه کېدنه

**خوټکېدوُنکے**:- (خُوټ+کې+دُو+ن+کے) (پ، اس، مف، مذ،وا، ج: خوټکېدوُنکي مؤ: خوټکېدونکې) (۱)يشېدوُنکے، خوټېدوُنکے، (۲) زيات غصّه کېدوُنکے

**خُوټ لُون**:- (خُوټ+لُو+ن) (پ، اس،مذ) د خايو ځاے، د خوټو ځاے

**خوټنګه**:- (خُو+ټَ+ن+ګَه) (اَف:پ (قاموس) اس،مؤ، وا، ج: خوټنګې) دېګچې

**خوټول**:- (خ+و+ټَ+و+ل) (پ،مص،مت) يشول، خُوټکول

**خوټولے**:- (خو+ټَ+و+لے) (پ،مف،مذوا، ج: خوټولي مؤ: خوټولې) يشولے، خوټکولے

**خوټونګ**:- (خو+ټ+و+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) خوټونه

**خوټونه**:- (خو+ټَ+و+نه) (پ، حمص) يشونه، خوټکونه، خوټونګ

**خوټووُنکے**:- (خو+ټَ+وُو+ن+کے) (پ فاع، مذ،وا، ج: خوټکووُنکي مؤ: خوټووُنکې) يشووُنکے، خوټکووُنکے، جوش ورکووُنکے

**خوټه**:- (خو+ټَه) (پ، اس،مؤ،وا،ج: خوټې) (۱)د غيناګۍ، خايه (۲) ځينې خلق د ماشوم غيږ ته خوټه وائي (۳)ځينې خلق ماشوم ته د مينے له کبله خوټے وائي لکه: خوټے راشه

**ـــ پرې کول**:-اِص (۱)سُنتول (۲) ځوک شرمول

**ـــ لګېدل**:-اِص (۱)خوټه دومره غټېدل چې د پټون سره لګې (۲) خوټه زخمې کېدل

**بربنډې خوټې**:-اِص، لغړې خوټې، بې پردې، چې جامې ئې نۀ وي اغوستې

**بې خوټو**:-اِص (۱)چې خوټې ئې نۀ وي (۲) بې غېرته چې د چا څۀ يره ترې نۀ کېږي، نه د چا د ښو نۀ د بدو

**په خوټو پسې ګرځېدل**:-اِص (۱)بې مقصده ځان کړول (۲)د زورورو خوشامنده کول

**په خوټۀ پورې زانګل**:-اِص، خوشامنده کول، خوټے تلل

**په خوټو خوټو کښې وهل**:-اِص، ځوک ښۀ وهل ټکول، داسې وهل چې خوټے ئې ماتے شي

**په خوټو کښېنول**:-اِص، پَرول، لَرول، د لاده باده ويستل

**په خوټو ګوتې وهل**:-اِص (۱)په خوټو لاس وهل (۲) څۀ کار ته ځان تيارول

**په خوټو نۀ پوهېدل**:-اِص، په هېڅ نه پوهېدل

**په خوټو ويښتۀ راتلل**:-اِص، بالغ کېدل، بلوغت ته رسېدل

**تور خوټے**:-اِص (۱)چې رنګ ئې تور وي (۲) هندکې

**خوټو ته کتل**:-اِص، د بل لاس ته کتل د بل نه طمع کول

**خوټو ته لاس اچول**:-اِص، د خوټو نه نيول

**خوټې ايستل يا ويستل**:-اِص (۱)خصي کول (۲) يَرول

**خوټې بائلل**:-اِص ،هېڅ نقصان نۀ کېدل

**خوټې پټول**:-اِص، ځان پټول، جامې اغوستل

**خوټې پرسول**:-اِص ،(۱)ځوک داسې وهل چې خوټې ئې اوپړسېږي (۲)په شهوت کښې راتلل

**خوټې پړسېدل**:-اِص، د وهلو يا بيمارئ د کبله ځاے پړسېدل، خوټې ډډېدل

**خوټې په ترنګړو کښې نۀ ځائېدل**:-اِص (۱)خوټې ډېرے غټېدل، (۲)ډېر مغروره او کبرجن کېدل

**خوټې په سر اخستل**:-اِص، سهوت زياتېدل

**خوټې په لاس کښې ورکول**:-اِص، چا ته هېڅ نۀ ورکول

**خوټې ترې ګېټو راتلل**:-اِص ،د خوټو بيمارې، د بيمارئ له کبله خوټې زياتې پړسېدل

**خوټې تخښېدل**:-اِص (۱)خوټې يتخورېدل، خوټې خاربښتېدل (۲) شهوت زياتېدل

**خوټې ټَلل**:-اِص، د چا ډېره خوشامنده کول، چا پلوسي کول

**خوټې تورېدل**:-اِص، ځوان کېدل، د ځوانئ علامې ښکاره کېدل

**خوټې تيخورېدل**:-اِص، و- خوټې تخښېدل

**خوټې تال کېدل**:-اِص، خوټې اوږدېدل، زياته ګرمي محسوسول

**خوټې ټپل**:-اِص، خصي کول، خوټې ټکول

**خوټې ټکول**:-اِص، و- خوټې ټپل

**خوټې خاربښتېدل**:-اِص، و- خوټې تخښېدل

**خوټې خوټې کېدل**:-اِص، هر ځاے کښې خوټې رازنګېدل، خوټې ډېرے زياتې غټېدل

**خوټې خوړل**:-اِص (۱)خوټې پخول او خوړل (۲)فضول خبرې کول، عبث ږغېدل، (۳) هېڅ نۀ خوړل

**خوټې درنېدل**:-اِص، شهوت زياتېدل

**خوټې ډډېدل**:-اِص، و- خوټې پړسېدل

**خوټې رپول**:-اِص (۱)خوټې زانګول، خوټې للو (۲)بې کاره ګرځېدل

**خوټې زانګول**:-اِص، و- خوټې رپول

**خُوټې زړۀ ته ختل**:-اِص، ډېر زيات يرېدل

**خُوټې سَنبالول**:-اِص، خوټې پټول، جامې اچول

**خُوټې سُولول**:-اِص، (۱)په خوټو لاس وهل (۲) د شهوت غلبه کېدل، خوټې ګرول

**خوټې ښئيل**:-اِص (۱)خوټې بربنډول (۲) انکار کول، چاته څۀ نۀ ورکول

**خوټې غوول**:-اِص، کنځل کول

**خوټې کلول**:-اِص (۱)خوټې پاکې کول (۲)د شهوت اظهار کول

**خوټې ګټل**:-اِص، هېڅ فائده په لاس نۀ راتلل، خپلې خوټې واپس راوړل

**خوټې ګرول**:-اِص، و- خوټې سُولول

**خوټې لرل**:-اِص، هېڅ نۀ لرل، نېستمن کېدل

**خوټې للول**:-اِص، و- خوټې رپول

**خوټې مرې کېدل**:-اِص (۱)يرېدل (۲) بې وسه کېدل، بې ښې کېدل (۳)شهوت نۀ را ولاړېدل

**خوټې منجول**:-اِص (۱)انکار کول (۲) زور ښکاره کول

**خوټې منډل**:-اِص، په څۀ کار کې دلچسپي نۀ لرل

**خوټې مېږې مېږې کېدل**:-اِص، شهوت زياتېدل

**خوټې نيول**:-اِص، خوټو ته لاس اچول (۲) خوشامنده کول، چاته زارئ کول

**خوټې ورکول**:-اِص، چاته هېڅ نۀ ورکول

**خوټې وړل خوټې راوړل**:-اِص، تش تلل او تش راتلل، بې مقصده تلل راتلل

**خوټې وينځل**:-اِص ،ځان پاکول، استنجا کول

**د چا خوټو ته درې وئيل**:-اِص ،ډېره خوشامنده کول

**د خوټو نه ترِل**:-اِص ،بد بد راګېرول، د خوټو نه راټپينګول

**د خوټو نه راټپينګول**:-اِص، و- د خوټو نه ترِل

**د خوټو نه نښتل**:-اِص، بد بد راګېرېدل

**د خوټو ويښته سپينېدل**:-اِص (۱)زيات بوډا کېدل، (۲) په څۀ کار پسې ډېر کړاؤ کول

**د خوټې سر**:-اِص ،د غيږ سر، د کنځلو په ډول استعمالېږي

**سرې خوټې**:-اص ، برېښنده خوټې

**سُور خوټې**:-اص(۱)اکثر ماشوم ته استعمالېږي (۲) د تکره توب نخښه

**غېږ خوټې نيول**:-اص (۱)د چا غېږ خوټو ته لاس اچول (۲)منت زاري کول

**لغړې خوټې**:-اص ، برېښنده خوټې

**خوټهار**:- (خو+ټ+ها+ر) (پ، اس، ص، مذ) و - خُوټ خوټائے

**خوټـه ور**:- (خوټـه+وَ+ر) (پ، اس، ص، مـذ) (۱)چـې خـوټې ئـې غټـې وي (۲) تکره، ځوانمرد

**خوټي**:- (خ+و+ټي) (پ (سو) اس، مؤ) هغـه ځانګـه چې زمکې تـه نزدې شوې وي

**په خوټۍ**:- اص ، د ونې زمکې ته په ځانګه راکوزېدل

**خوټېدل**:- (خُو+ټې+د+ل) (پ، مص، لا) و - خُوټکېدل

**خوټېـدلے**:- (خُـو+ټې+د+لے) (پ، مـف، مـذ، وا، ج: خوټېـدلي مـؤ: خوټېـدلې) و - خوټکېدلے

**خُوټېدنګ**:- (خُو+ټې+د+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خُوټکېدنه

**خُوټېدنه**:- (خُو+ټې+د+نه) (پ حمص) و - خُوټکېدنه

**خوټېـــدُونکے**:- (خُـــو+ټې+دُو+ن+کَے) (پ مـــف مـــذ و ج: خوټېـــدُونکي مـــؤ: خوټېدوُنکې) و - خوټکېدوُنکے

**خُوټېدۀ**:- (خُو+ټې+ده) (پ حمص) و - خوټکېدنه

**خوځنـــد**:- (خَ+وَ+د+زَ+ن+د) (پ، ص مـــذ، مـــؤ: خوځنـــده) خوځېـــدُونکے، شوربدوُنکے، حرکت کووُنکے، خوځندے، خوځيز

**خوځندتوب**:- (خوځند+تو+ب) (پ، اس، مـذ) خوځېدنـه، شـورېدنه، حرکت کونه

**خوځندکه**:- (خَ+وَ+د+زَ+ن+د+کَه) (پ، اس،مؤ، وا، ج: خوځندکې) خوځنده، حشره، چينجي

**خوځنده**:- (خَ+وَ+د+زَ+ن+دَه) (پ، اس،مؤ، وا) و - خوځندکه

**خوځنـــدے**:- (خَ+وَ+د+زَ+ن+دَے) (پ،اس،مـــذ،وا،ج: خوځنـــدي مـــؤ، وا: خوځندۍ) و - خوځند

**خوځول**:- (خ+وَ+د+زَ+و+ل) (پ، مص،مت) خوځول، شورول، حرکت ورکول

**خوځولے**:- (خ+وَ+د+زَ+وَ+لے) (پ، مـف، مـذ، وا، ج: خوځـولي مـؤ: خوځـولې) خوځولے، شورولے، حرکت ورکړے

**خوځونګ**:- (خ+وَ+د+زَ+وَ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) خوځونه

**خوځونه**:- (خ+وَ+د+زَ+و+نه) (پ، حمص) خوځونګ، خوځونه، شورونه، حرکت ورکونه

**خوځووُنکے**:- (خ+وَ+د+زَ+وُو+ن+کَے) (پ،اس،فاع،مذ،وا، ج: خوځـووُنکي مـؤ: خوځووُنکې) خوځووُنکے، شورووُنکے، حرکت ورکووُنکے

**خوځه**:- (خُو+د+زَه) (اَف:پ (قاموس) اس،مؤ) د ځناور د سينے غوښه

**خوځېدل**:- (خ+وَ+د+زې+د+ل) (پ، مص، لا) خوځېدل، شوربدل، حرکت کول

**خوځېـدلے**:- (خ+وَ+د+زې+د+لے) (پ،مـف،وا،ج: خوځېـدلي مـؤ: خوځېـدلې) خوځېدلي، شوربدلے

**خوځېدنګ**:- (خ+و+د+زې+د +ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) خوځېدنه

**خوځېدنـــه**:- (خ+وَ+د+زې+د+نـــه) (پ حمـــص) خوځېـــدنګ، خوځېدنـــه، شوربدنه، حرکت کونه

**خوځېدوُنکے**:- (خ+وَ+د+زې+دُو+ن+کَے) (پ،مف،مذ،وا، ج: خوځېدوُنکي مـؤ: خوځېدوُنکې) خوځېدوُنکے، شوربدوُنکے، حرکت کووُنکے

**خوځېـدۀ**:- (خ+وَ+د+زې+دۀ) (پ حمـص) خوځېدنـه، خوځېـدۀ، خوځېدنـه، حرکت کونه، شوربدنه

**خوځيز**:- (خ+وَ+د+زې+ز) (اَف:پ (قاموس) ص، مذ) و - خوځند

**خُوچے**:- (خُو+ چے) (پ (مر) اس، مذ، وا، ج: خُوچي) آسمان چاکلے، بښاپېرک

**خُوږ**:- (خُو+ت+س) (پ، اس، ص، مذ) د اُوبو جوش، د اُوبو يشېدل

**خوږ**:- (خ+و+ت+س) (اَف:پ (قاموس) ص،مذ،مؤ،وا: خوږۀ ج: خوږي) ډېر ډک، پُور، تر خولې ډک

**په خوږ**:-اص ، تر خولې ډک، ډېر زيات ډک

**خوږ**:- (خ+و+ت+س) (پ (ب،خ) اس، مذ) حرکت، خوځېدل

**نۀ وهل**:-اص ، هېڅ حرکت نۀ کول

**خُوږکې**:- (خُو+ت+س+کَي) (اَف:پ (قاموس) اس،مذ) د اُوبو جوش

**خوږـــول**:- (خ+وَ+ت+سَ+و+ل) (پ (ب،خ) مص،مـــت) شـــورول، ګرځـــول، خوځول

**خوږول**:- (خ+و+ت+سَ+و+ل) (اَف:پ (قاموس) مص،مت) ډکول، پُور کول

**خُوږـــول**:- (خُـــو+ت+س+و+ل) (اَف:پ (قـــاموس) مص،مـــت) جـــوش ورکـــول، يشول

**خوږولـــے**:- (خ+وَ+ت+سَ+و+لـــے) (پ (ب،خ) مف،مـــذ،وا،ج: خوږـــولي مـــؤ: خوږولې) شورولے، ګرځولے، خوځولے

**خُوږولے**:- (خُو+ت+س+و+لے) (اَف:پ (قاموس) مف،مذ،وا، ج: خوږولي مؤ: کوږولې) يشولے، جوش ورکړے

**خُوږونګ**:- (خُو+ت+س+وَ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خُوږونه

**خوږونه**:- (خ+وَ+ت+سَ+و+نه) (پ (ب،خ) حمص) شورونه، ګرځونه، خوځونه

**خوږونه**:- (خ+و+ت+س+و+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) ډکونه، پُور کونه

**خُوږونـــه**:- (خُو+ت+س+و+نـــه) (اَف:پ (قـــاموس) حمـــص) خوږونـــګ، يشونه، جوش ورکونه

**خوږووُنکے**:- (خ+وَ+ت+سَ+وُو+ن +کَے) (پ (ب،خ) فاع،مذ،وا،ج: خوږوُونکي مؤ: خوږووُنکې) شورووُنکے، ګرځووُنکے، خوځووُنکے

**خوږووُنکـــے**:- (خ+و+ت+سَ+وُو+ن+کَـــے) (اَف:پ (قـــاموس) فاع،مـــذ،وا، ج: خوږووُنکي، مؤ: خوږووُنکې) ډکووُنکي، پُور کووُنکے

**خُوږووُنکـــے**:- (خُـــو+ت+سَ+وُو+ن+کَے) (اَف:پ (قـــاموس) فاع،مـــذ،وا،ج: خُوږـــووُنکي مـــؤ: خوږـــووُنکې) جـــوش ورکـــووُنکے، يشـــووُنکے، خوټکووُنکے

**خوږۀ**:- (خُو+ت+سَه) (پ، مؤ،وا،ج: خُوږې) سُورے سروے، غار

**خوږېـــدل**:- (خ+وَ+ت+سې+د+ل) (پ (ب،خ) مـــص،لا) شـــوربدل، ګرځېـــدل، خوځېدل

**خوږېدل**:- (خ+و+ت+سې+د+ل) (اَف:پ (قاموس) مص،لا) ډکېدل، پُور کېدل

**خُوږېـــدل**:- (خُو+ت+سې+د+ل) (اَف:پ (قـــاموس) مـــص،لا) يشـــېدل، جـــوش ورکولے کېدل، خُوټکېدل

**خوږېدلے**:- (خُو+ت+سې+د+لے) (اَف:پ (قـاموس) مف،مـذ،وا،ج: خوږېـدلي مؤ: خوږېدلې) ډک شوے، پُور شوے

**خُوږېدلے**:- (خُو+ت+سې+د+لے) (اَف:پ (قـاموس) مف،مـذ،وا،ج: خوږېـدلي مؤ:خوږېدلې) يشبدلے، خُوټکېدلے

**خوږېدنګ**:- (خُو+ت+سې+دَ+ن+ګ) (اَف: (قاموس) حمص) خُوږېدنه

**خوږېدنـــه**:- (خ+وَ+ت+ســـې+د+نَه) (پ (ب،خ) حمـــص) شـــوربدنه، ګرځېدنـــه، خوځېدنه، خوږېدۀ

**خوږېدنـــه**:- (خ+و+ت+ســـې+د+نه) (اَف:پ (قـــاموس) حمـــص) خوږېـــدنګ، ډکېدنه، پور کېدنه

**خُوږېدنـــه**:- (خُو+ت+ســـې+د+نه) (اَف:پ (قـــاموس) حمـــص) خوږېـــدنګ، يشبدنه، جوش ورکېدنه، خوټکېدنه

**خوږېـــــدُونکے**:- (خ+وَ+ت+ســــې+دُو+ن+کَے) (پ (ب،خ) مف،مـــــذ،وا، ج:

خوښېدُونکي مؤ: خوښېدُونکې) شورېدُونکے، ګرځېدُونکے، خورېدُونکے

**خوښېدُونکے**:- (خ+و+ت+سې+دُو+ن+کَي) (اَف:پ (قاموس) مف،مذ،وا،ج: خوښېدُونکي مؤ: خوښېدُونکې) ډکېدُونکے، پُور کېدُونکے

**خُوښېدُونکے**:- (خُو+ت+سې+دُو+ن+کَے) (اَف:پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج: خوښېدُونکي مؤ: خوښېدُونکې) يشېدُونکے، جوش کووُنکے، خوټکېدُونکے

**خوښېدۀ**:- (خ+وَ+ت+سې+دۀ) (پ (ب،خ، حمص) و - خوښېدنه

**خوخې**:- (خُو+خې) (پ (بنګ) اس،مذ،وا،ج: خوخئ) تبغ، غوړګه، سترګه

د سپرلي پـه راتلو ولې خوشحالېږې

منډوکيه نۀ دې ځانګه شته نۀ خوخئ [نبانيے] (جعفر رښتينے)

**خوخے**:- (خَ+و+خَے) (اَف:پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: خوخي) يو قسم شين بُوټے چې په يو ځاے کښې زيات راټوکېږي او جرړے ئې ډېرے نرمے وي

**خود**:- (خُ+د) (پ حرف) (۱)پکار، په خپله

ستاد تورې سترګې خود تورې بلا دي

درتـه چا وے چې ئې تورې په کجل کا (خوشحال)

(۲)خامخا، بېشکه (۳) هوش

**په خود**:-اص ، خپل په خپله

**په خود**:-اص ، په هوش کښې

**په خود کښې راتلل**:-اص ، په خود کېدل

**په خود کېدل**:-اص ، په هوش کښې راتلل، په ځان پوهېدل، په خود کښې راتلل

**خودبين**:- (خُو+د+بِي+ن) (فا،اس،مذ) (۱)په ځان غاوره، په ځان مئين (۲)خود غرضه، مطلبي

عشقه تۀ خودبين ئې زۀ پښتون يمه

مـانـۀ ده ښائيلے ګدا سترګو ته (حمزه شنواري)

**خُودبيني**:- (خُو+د+بي+نِي) (فا،اس،مؤ) (۱)پـه ځـان غـاورتوب، پـه ځـان مئينتوب (۲) خود غرضي

دا په دا چې خود بيني ورځخه نشته

د جهان تـنـداره ځـکه دوه ليمۀ کا (خوشحال)

**خُود پرست**:- (خُو+د+پَ+رَ+س+ت) (فا،اس،ص،مذ (مؤ،وا: خودپرسته ج: خود پرستي) خود غرض، د ځان پام لرُونکے، ځان ته کتونکے

**خُود پرستي**:- (خُو+د+پَ+رَ+س+تِي) (فا،اس، مؤ) خود غرضي، د ځان پال لرنه، ځان ته کتنه

**خُـود پسند**:- (خُو+د+پَ+سَ+ن+د) (فا، اس، ص، مذ) د خپلې طبعې، د خپلې مرضئ مالک

**خـود دار**:- (خُو+د+دا+ر) (فا، اس، ص، مذ (مؤ وا: خود داره ج: خُود داري) غيرتي، سُوچه پښتون، په پښتو ولاړ، نر

**خُود داري**:- (خُو+د+دا+رِي) (فا، اس، مؤ) غيرت، نرتوب، پـه پښتو ټينګ اُودرېدنه

**خُود رايه**:- (خُو+د+را+يَه) (پ، اس، ص، مذ، مؤ) خود سر، بې پروا، پـه خپله مخه، سرکش

**خُود رايئ**:- (خُو+د+را+ئي) (فا، اس، مؤ) خپله مرضي

ديندارې پـــه خـود رائي سره نۀ شي

په دا کار کښې بې مرشده بې پيرمه شه (حميد)

**خُود سر**:- (خُو+د+س+ر) (فا، اس، ص، مذ (مؤ، وا: خُود سره ج: خُود سري) و- خُود رايه

**خُود سري**:- (خُو+د+س+رِي) (فا، اس، مؤ) سرکشي، په خپله مخه تلنه، خپله ډنګونه

**خُود ښکه**:- (خُو+د+ش+يا+خ+کَه) (اَف:پ (قاموس) کلمه مؤ) د قسم خوړلو لوټکي لکه خدا ے ګو

**خـود غـرض**:- (خُو+د+غَ+رَ+ض) (فا، اس، ص، مذ (مؤ، وا: خُود غرضه ج: خُود غرضي) مطلبي، بې وفا، په خپل غرض پسې، بد نيته

**خود غرجي**:- (خُو+د+غَ+ر+ضِي) (فا،اس، مؤ) مطلب پرستي، بې وفائي

**خود کار**:- (خُو+د+کا+ر) (فا، اس، ص، مذ (مؤ وا: خودکاره ج: خودکاري) په خپله کار کووُنکے، خپل په خپله چلېدوُنکے وسله

**خود کاشت**:- (خُو+د+کا+ش+ت) (فا، ص، مذ) په خپله زمکه کرنه

**خُودکشي**:- (خُو+د+کُ+شي) (فا، اس مؤ) ځان پـه خپله مړکونه، خپلې مرئي ته په خپله زندئ اچونه، غلط کار

**خودله**:- (خُو+د+لَه) (اَف:پ (قاموس) اس، مؤ) يو قسم دَروے يا کړکے، نچه

**خُود مختار**:- (خُو+د+مُ+خ+تا+ر) (فا، اس، ص، مذ (مؤ، وا: خود مختاره ج: خود مختاري) آزاد، د خپلې مرضئ مالک

**خود مختاري**:- (خُو+د+مُ+خ+تا+رِي) (فا، اس، مؤ) آزادي، خپله مرضي

**خودمه**:- (خو+د+مه) (اَف:پ (قاموس) ص) وهلے شوے، ټکولے شوے

**ـــ کول**:-اص ، وهل ، ټکول

**ـــ کېدل**:-اص ، وهلے کېدل، ټکولے کېدل

**خُودي**:- (خُو+دې) (فا، اس، مؤ) اَنا، زۀ ، ځان

**خور**:- (خ+و+ر) (پ، اس، مذ، وا ج: خوروُنه) (۱)د زخم يا پرهر پټ (۲) پوستکے، څرمن

**ـــ اچول**:-اص ، پټ غورزول، پستکے لرے کېدل

**ـــ اړول**:-اص ، پټ لرے کول، پوستکے ويستل

**ـــ اوښتل**:-اص (۱) پټ لرے کېدل، پوستکے لرے کېدل ، خور غورزول (۲) رنګ بدليدل

**ـــ غورزول**:-اص (۱)خور اوښتل (۲) شته من کېدل (۳) ښائسته کېدل

**ـــ نيول**:-اص ، پټ نيول

**ـــ ورکول**:-اص ، څرمنے ته رنګ ورکول

**د خور کښل**:-اص (۱)د څرمنے نه ويستل (۲) پاکول، صفا کول

**خور**:- (خو+ر (پ، ص،مذ (مؤ وا : خوره ج: خوري ) ويړ

کـه زما په پرېشانئ ترو تازه شي

د شبنم په ژړا ګُل په خندا خور لاړ (بېدل)

مؤ:

زلفے ئې خورے په رخسارُونو دي

بل تورو تيارو کښې مشالونه دي (شمس الزمان شمس)

**خور**:- (خو+ر) (پ، اس، مؤ وا ج: خوئېندي) د چا د مور پلار لُور

متل: خورې دا کال خو به تېر شي خو دا ستا سورے پتُون به مې هېر نۀ شي

**ـــ انحستل**:-اص (۱)د چا د خور سره وادۀ کول (۲)څوک بد بد وهل ټکول

**ـــ ورکول**:-اص ، خور چاته په نکاح کول

**خورا**:- (خو+را) (پ، ص) ډېر زيات، بېخي، زښت

**خوراړه**:- (خُو+را+ړَه) (پ، اس، مؤ) د جذام يا برص بيماري

**ـــ وړېربوتل**:-اص خوراړه ور لويېدل، د جذام يا برص په مرض اخته کېدل

**خوراړه ورلوئيېدل**:-اص ، و - خواړه ور پرېوتل

**خـورازک**:- (خُو+را+زَ+ک) (پ، اس، مذ وا) خُروسک، د مرئ يو مرض، خورسک

**خوراک**:- (خو+را+ک) (پ، اس، مذ، وا ج: خوراکُونه) خواړه

**ـــ ته ترسېدل**:-اص (۱)د پرهېز له کبله څهٔ څيز ته لاس نهٔ وروړل (۲)د غريبئ او بې وسئ په وجه څهٔ څيز خوراک ته نهٔ موندل
**ـــ کول**:-اص ، خوړل
**د سپو خوراک کېدل**:-اص ، د سپي په شان خوړل، په بدف تميزئ خوراک کول
**خوراک څښناک**:- (خوراک+ت+س+شا+ک يا خا+ک ) (پ، اِس، مذ ) (۱)خوړل څښل، څکه (۲) د خوړلو څښلو څيزونه
**ـــ کول**:-اص ، خوړل څښل، څکه کول، ځان مړول
**خوراکي**:- (خو+را+کي) (پ ، ص) (۱)خوراک کووُنکے (۲) خېټو، ډېر خور (۳) بلوې خور
**خوراکي**:- (خو+را+کي) (پ (بلو) اِس) د ولور کُومے پېسې چې مور پلار يا بل وارث ته پاتے شي
**خورانه**:- (خو+را+نَه) (پ، اِس مؤ) هغه ګډورے چې لاترے وړئ کتلېے شوے نهٔ وي
**خور بللي**:- (خُو+ر+بَ+ل+لي) (اَف:پ (قاموس) اِس، ص، مؤ) چې خور ورته وئيلې شوي وي، د خور په نوم ياده شوے، خورلېه
**خوترتيا**:- (خور+ت+يا) (پ، اس، مؤ) خورګير، خوروالے، خو ولي، خورينګه توب
**خوتې اوبهٔ**:- (خو+ر+تې+اُو+بهٔ) (پ ص ) خړې اوبهٔ ، ګنده اوبهٔ
**خورج**:- (خ+و+ر+ج) (اَف:پ (قاموس) ص، مذ) لوے کار، د نُوم کار
**ـــ وهل**:-اص ، لوے کار شروع کول، سترے چارے ته لاس اچول
**خُورجه**:- (خُو+ر+جَه) (پ (ګن) اس، مؤ ، وا، ج: خُورجي) خورځه، د خور لور
**خورجي**:- (خ+و+ر+جی) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ ) (۱)ګردنئ (۲) يو قسم جولئ يا کڅوړه چې په مېنځ کښې ګنډلے شوے وي
**خورجين**:- (خُو+ر+جي+ن) (پ،اِس، مذ، وا، ج: خورجينونه) هغه کڅوړه چې دوه خُصّې لري او د اَس په زين يو خوا بل خوا زوړندولے شي چې په کښې د سفر د خوراک څښناک او نور ضروي څيزونه وي
**خورجينه**:- (خُو+ر+جي+نَه) (پ، ا، مؤ، وا، ج: خورجيني) داسې تپوئي چې غوړونه پرې پټ وي او اکثر د سفر په وخت کښې استعمالوے شي
**خورځن**:- (خو+ر+د+ز+ن) (پ، ا، مذ) يو قسم سره خاوره چې تبخې ترے جوړېږي
**خورځه**:- (خُ+ر+د+زهٔ) (پ، اِس ، مؤ، وا، ج: خورځي) خورجه، د خور لُور
**خورځه توب**:- (خورځه +تو+ب) (پ، اس، مذ) خورځه والے، د خور لُور توب
**خورځه والے**:- (خورځه +وا+لے) (پ، اِس،مذ )و - خورځه توب
**خورخل**:- (خو+ر+خَ+ل) (پ، اِس، مذ، وا، ج: خورخلُونه) د ګډو بزو د دوړئ يا وژغنو کتيولو بياتي يا قينچې
**خورزن**:- (خو+ر+ز+ن) (پ،اس، مذ) يو قسم نرم کاڼے چې د ميده کولو نه پس د خاورې سره ګډولے شي او د لوښو په جوړولو کښې پکارېږي
**خورزُون**:- (خو+ر+زُو+ن) (خو+ر+زُو+ن) (پ، اس مذ )طبيعت، طبع، خوئ
**خُورسک**:- (خُو+ر+س+َک) (پ، اس، مذ) و - خورازک
**خورسک**:- (خ+و+ر+س+َک) (پ، اِس، ص، مذ) خوشحالي
**خورسکتوب**:- (خ+و+ر+س+َک+تو+ب) (پ،اس، مذ) خوشحالېدنه
**خورغود**:- (خور+غو+د) (پ، اس، ص، مذ) (۱)هغه څوک چې د خپل پردي تميز نهٔ کوي، د کنځلو په ډول وئيلې شي (۲) بې اعتباره
**خورغودي**:- (خور+غو+دي) (پ، ص، مؤ) (۱)د خپل پردي تمز نهٔ کول (۲) بې اعتباري
**خورک**:- (خ+و+ر+َک) (پ، اس، مذ ) د خوراک طريقه
**خورکوځي**:- (خو+ر+کو+ ځي) (اَف:پ (قاموس) اس، مؤ) د جينکو يوه لوبه
**خورکـه**:-(خو+ر+کـه) (اَف:پ (قاموس) اَف:پ (قاموس)اس تصغير مؤ) خورکۍ، ورکوټي شان خور، د مينے او احترام له کبله جينکو ته وئيلې شي
**خورکه**:- (خ+و+ر+َکه) (اَف:پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: خورکې) خاورين کنډول
**خورکۍ**:- (خو+ر+َک+ی) (پ، اِس، تصغير، مؤ) خورۍ، وړه خور، خورکه
**خورکي**:- (خ+و+ر+کي) (اَف:پ (قاموس) ص )د خوړلو وړ څيز
**خورکے**:- (خ+و+ر+کَے) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ )خرا، خرهار، خر راړے، د خر خر اواز، خر ړهار
**کول**:-اص ، خرړېدل، خرړهار کول، د خر خر اواز کول
**خورګ**:- (خو+ر+ک) (پ (سو) اس،مذ) خوريا پوتخے ختل
**خورګيري**:- (خو+ر+ګي+ري) (پ، اس، مؤ) خور والے، د خور ورور تعلق
**خورلېه**:- (خُو+ر+ل+ن+ړه) (پ، اِس، ص، مؤ، وا، ج: خورلېي) خورکۍ، نژدوخپله، د رشتے خور
**خُورما**:- (خُو+ر+ما) (پ، اس) خُرما، کجوري
**خور ما خور**:- (خو+ر+ما+خو+ر) (پ، ص، مذ) خور وور، ګډوډ، ويړ پروت
**خورمائي**:- (خو+ر+ما+ئي) (پ، ص) هغه څيز چې رنګ ئې د خُرما په شان وي
**خورمزي**:- (خو+ر+مَ+زي) (پ (يوسف، صوابي اس) خوند، مزه
**بې خور مزي**:-اص ، بې خوندي، طبيعت خړېدنه
**خورمن**:- (خ+و+ر+مَ+ن) (پ، اس) اشتهاء
**خور منج**:- (خو+ر+مَ+ن+ج) (پ (ب،خ) اس) خورمنځ، طبيعت

موافق مې په خورمنج يو زويه نشته
همګي واړه د خپل غـــرض دي کار (خوشحال)

**خور منځ**:- (خو+ر+مَ+ن+د+ز) (پ، اس) و - خورمنج
**خور منځوالے**:- (خو+ر+مَ+ن+د+ز+وا+لے) (پ (آفر) اس، مذ) حامله کېدل، اُميد واره کېدل
**خورمنے**:- (خو+ر+م+نَے) (اَف:پ (قاموس) اس، مذ) د طاقت خوراک ورکووُنکے
**خورې ورې**:اص ، پرېشانه
**خورېدل**:- (خ+و+رې+د+ل) (پ، مص، لا، (۱)خورلے کېدل (۲) نشر کېدل، شائع کېدل، چاپ کېدل (۳) هوارېدل، ګډ وډ کېدل، ويرېدل

يو اور وو ظالم زور وو چې چاپېره خورېدلو
د سرو ګلو غـــوټېـئ ئې ســوځولے تهٔ چې تلے (شمس الزمان شمس)

**خورېدلے**:- (خ+و+رې+د+لے) (پ، مف، مذ، وا، ج: خورېدلي مؤ: خورېدلې) (۱)نشر شوے، شائع شوے، چاپ شوے (۲)هوار شوے، ويړ شوے، ګډ وډ شوے (۳) جلب شوے
**خورېدنه**:- (خ+و+رې+د+نَه) (پ، حمص) خورېدهٔ (۱) خورلے کېدنه (۲) نشر کېدنه چاپ کېدنه، شائع کېدنه (۳) هوارېدنه، ويرېدنه، ګډ وډ کېدنه (٤) جلب کېدنه
**خورېدوُنکے**:- (خ+و+رې+دُو+ن+کَے) (پ، مف، مذ، وا، ج: خورېدوُنکي مؤ: خورېدوُنکې) (۱)خورلے کېدوُنکے (۲) نشر کېدوُنکے، شائع کېدوُنکے، چاپ کېدوُنکے (۲) هوارېدوُنکے، ګډ وډ کېدوُنکے، ويرېدوُنکے (٤) جلب کېدوُنکے
**خورېدهٔ**:- (خ+و+رې+دهٔ) (پ، حمص) و - خورېدنه
**خَورين**:- (خَو+رې+ن) (پ، ص، مذ) خاورين، د خاورو نه جوړ
**خورينګه**:- (خو+ري+ن+ګه) (پ، ا س، مؤ) ملګرې، سهيلئ، خور بللے، خورينه
**خورينګه توب**:(خورينګه+تو+ب) (پ، اِس، مذ) خوروالے، خودبلنه، خورولي

**خورينه**:- (خو+رِي+نَه) (پ، اس، مؤ وا، ج: خوريني) و - خورينگه

**خوړ**:- (خ+وَ+ړ) (پ، اس، مذ، وا، ج: خوړُونـه) الگړه، خوړه، د بارانۀ د اُوبو پخه لار، د سيلاب لار

—— **اَوړېدل**:-اص، (۱)د خوړ د اوبو مخه بدلول (۲)د خوړ اوبۀ د سيلاب په وجه په پټو راختل

—— **بهيول**:-اص، ډېرے اوبۀ تويول

—— **په تُوره وهل**:-اص ،خوړ ته توره را ويستل، نۀ كېدوُنكے او عبث كار د كولو كوښښ كول

**خوړ په مخه اخستل**:-اص (۱)څوک په خوړ كښې لاهو كېدل (۲)څوک په څۀ خبره كښې سر گردانه كېدل، خوړ په مخه كول

—— **په مخه كول**:-اص، و - خوړ په مخه اخستل

—— **تړل**:-اص ،(۱)باراني اوبو ته بند اچول (۲) د څۀ خبرې بند بنا كول

—— **ته اچول**:-اص ،(۱)خوړ ته ورگذارول (۲) عبث بربادول، خوړ ته غورزول

—— **ته غورزول**:-اص، و - خوړ ته اچول

—— **ختل**:-اص ،په خوړ كښې سېلاب راتلل، د خوړ د اوبو مخ اوچتېدل

—— **راتلل**:-اص، د باران په وجه په خوړ كښې اوبه رابهېدل، سېلاب راتلل

—— **راوړل**:-اص ،(۱)څۀ څيز په خوړ كښې راتلل (۲) بې اسرے شمار كېدل

—— **كوزېدل**:-اص ،د خوړ د سېلاب اوبۀ كمېدل

—— **وړل**:-اص ،(۱)خوړ لاهو كول (۲) عبث بربادېدل

**خوړ**:- (خو+ړ) (اَف:پ (قاموس) اس،مذ) تيار، آماده، ملاتړلے

**خُوړ**:- (خُو+ړ) (اَف:پ (قاموس) مذ) د كوز كتلو اواز، د باقيوبا اُلتيو اواز

—— **وهل**:-اص، په ډكه خولۀ باقئ كول، كُوز كتل

**خوړت**:- (خ+و+ړَ+ت) (د پوزې د گړنگو اواز)

**خـوړتن**:- (خ+و+ړ+تَ+ن) (پ (خ) اس، ص، مـذ (مـؤ وا: خوړتنـه ج: خـوړتني) (۱)هغه څوک چې پوزه ئې څاڅي (۲) ناجانه، بې كاره، سست پست

**خوړتـول**:- (خ+و+ړَ+تَ+و+ل) (پ (خ) مـص، مـت) د پـوزے نـه راڅڅېـدوُنكې گړنگ پورته راكښل

**خوړتونه**:- خ+و+ړَ+تَ+و+نه) (پ، (خ) حمص) د پوزے نه راڅڅېدوُنكے (۲) په اُوبو كښې غوپه وركونه

**خوړوُوني**:- (خ+و+ړُو+نِي) (پ، اس، جمع) خوراكي شيان، د خوراک څيزونه

**خـوړووُنكے**:- (خُـو+ړ+وو+ن+كے) (پ، اس، فـاع، مـذ ،وا، ج: خـوړووُنكي مـؤ: خوړونكې) (۱)خوراک وركووُنكے (۲) په اوبو كښې غوپه كووُنكے

**خوړه**:- (خ+و+ړَه) (پ (گن) اس مؤ) خوړ، الگړه، د سېلاب د اُوبو لار

**خـوړه**:- (خ+و+ړه) (اَف:پ (قـاموس) اس، مـؤ، وا، ج: خـوړي) (۱)ډېـره نرمـه زمكـه، د سېلاب لهے او ختے (۲) د اكوړه ختكو يوه سيمه چې د هغـه ځاے خلق د خوړې ختک وائي

گل شوے د خوړې د بن پلوسے
خـوشحاله ولے بې گشته اوسے

—— **اچول**:- (اَف: پ) اص ،د سېلاب لهے او ختے په زمكه كښې اچول

**خوړه**:- (خ+و+ړَه) (اَف:پ (قاموس) اس، مؤ) (۱)خوراک (۲) د وادۀ په موقعـه د جينۍ كور ته چې كُوم وچ خوراک لېږلے شي (۳) د وادۀ ډوډۍ

خاص و عـــام دے طمع كا بخره به مومي
لوے وادۀ، لويه خوړه، لوے ئې خوئے دے (خوشحال)

(٤)تنخواه، ماجب

—— **وركـول**:- (اَف:پ) اص، (۱)خـوراک وركـول، ډوډۍ وركـول (۲)د وادۀ پـه موقعـه د جينـۍ كـور تـه وچ خـوراک لېـږل (۳)د وادۀ روټـۍ وركـول، (٤)تنخواه وركول، ماجب وركول

**خوړهار**:- (خُو+ړ+ها+ر) (پ، اس، صو، مذ) و - خُوړكے

**خوړه مار**:- (خ+و+ړه+ ما+ر) (اَف:پ (قاموس) اس صفت، مذ مؤ: خوړه ماره) (۱)خوراكي، خېټو (۲) بډې خور، رشوتي (۳) ماجب خور

**خـوړه مـارتوب**:- (خ+و+ړۀ+مـا+ر+تو+ب) (اَف:پ (قـاموس) اس، مـذ) (۱)ډېـر خوراک كونه (۲) بډې خوړنه، رشوت اخستنه

**خوړه ماري**:- (خ+و+ړه+ما+رِي) (اَف:پ (قاموس) اس، مؤ) (۱)زيات خوري، ډېر خوراكي، (۲) بډې خوري

**خوړي**:- (خو+ړِي)(اَف:پ (قاموس) اس، مؤ) دسټُونه راوستونكے بُوټے، خېټه نرموونكے بُوټے

**خـوړي بـوړي**:- (خو+ړِي+بـو+ړِي) (اَف:پ (قـاموس) ص) ډېـر لېوالـه، زيـات حريص، چُوسكنس

**خوړي بوړي كول**:-اص، زيات لېوالـه كول، ډېر حرص كول، زيات چُوسک وهل

—— **كېدل**:-اص، زيات لېواله كېدل، ډېر حريص كېدل، زيات چُوسكن كېدل

**زړۀ خـوړي بـوړي كېـدل**:-(اَف) اص، زړۀ زيـات لېوالـه كېـدل، ډېـر خواهشـمن كېدل

**خوي بوړي تـوب**:- (خو+ړِي+بو+ړِي +تو+ب) (اَف:پ (قاموس) اس، مذ) ډېر لېواله توب، زيات چُوسكنتوب

**خُوړېدل**:- (خُو+ړِي+د+ل) (پ، مص، لا) (۱)باقئ كېدل، اُلتۍ راتلل، قے كول (۲)موړ كېدل، په خېټه مړېدل(۳) دساه په ذريعه په اوبو كښې خړخړ اواز پيدا كول

**خُوړېـدلے**:- (خُـو+ړِي+دَ+لے) (پ، مـف، مـذ، وا، ج: خُوړېـدلي مـؤ: خوړېـدلې)(۱)التۍ ورغلے، قے شوے، باقئ ورغلے(۲)په خېټه موړ شـوے (۳)اوبو كښې د ساه په ذريعه د خړخړ اواز پيدا كړے

**خُوړېدنه**:- (خُو+ړِي+د+نَه) (پ حمص) (۱)باقئ كېدنه، التۍ راتلنه، قے كېدنه (۲)مړېدنه په خوراک (۳) د ساه په ذريعه په اوبو كښې د خړخړ اواز پيدا كېدنه

**خُوړېدوُنكے**:- (خُو+ړِي+دُو+ن+كے) (پ، اس، فا، مذ، وا، ج: خُوړېدوُنكي مؤ: وړېـدوُنكې) (۱)بـاقئ كېـدوُنكے، التۍ راتلوُنكے، قے كېـدوُنكے (۲)پـه خېټه مړېدوُنكے، په خوراک موړ (۳)د ساه په ذريعه په اوبو كښې د خړخړ اواز پيدا كېدوُنكے

**خوړين**:- (خُ+و+ړِي+ن) (پ، ص، مذ (مؤ، وا: خوړينه ج: خوړني) (۱)ډېر پوغ، گليا، سخا كېدو ته نزدې (۲)تر پوزې راغلے، ډېر تنگ شوے

**خوړين كول**:-اص (۱)ډېر پخول، گليا كول (۲)ډېر تنگول، تر پوزې راوستل

**كېدل**:-اص (۱)ډېر پخېدل، گليا كېدل (۲)ډېر تنگېدل، زيات سُوختېدل

**چاته خوړين كېدل**:-اص، ورته خوړين كېدل، د چا وسره ډېر قَست پيدا كېدل، چاته ډېره زياته غصه راتلل

**زړۀ خوړين كېدل**:-اص، په څۀ پورې ډېر زيات ستومانه كېدل، نفرت او كركه پيدا كېدل

**ورته خوړين كېدل**:-اص، و - چاته خوړين كېدل

**خـوړين پـړين**:- (خـوړين+پ+ړِي+ن) (پ، ص، مـذ (مـؤ، وا: خوړينـه پړينـه ج: خوړيني پړيني) (۱)ډېر خوړين، ډېر پوخ، پوست او نرم

زۀ دے درسته لـــه بـــاغـــــه اوويستم دلبرهَ
تور زاغان په كښې مېوے خوري كوړينے پړينے (خواجه محمد بنگش)

(۲)ډېر سوخت شوے، ډېر غُصه شوے

—— **كول**:-اص، (۱)ډېر خوړينول، ډېر پخول، ډېر نرمول (۲)ډېر سُوختول، ډېر په غُصه كول

ـــــ **کېدل**:-اص (۱)ډېر خوږينېدل، ډېر پخېدل، ډېر نرمېدل (۲)ډېر سوځېدل، ډېر غصّه کېدل

**خوږينتوب**:- (خو+ږي+ن+تو+ب) (پ،اس،مذ) خوږينتيا، خوږينوالے، ګليا کېدنه، زيات ترمېدنه

**خوږينتيا**:- (خو+ږي+ن+ت+يا) (پ، اس، مؤ) و - خوږينتوب

**خوږينوالے**:- (خو+ږي+نَ+وا+لے) (پ، اس، مذ) و - خوږينتوب

**خوږينول**:- (خو+ږي+نَ+و+ل) (پ، مص، مت) (۱)زړۀ د تاؤنه ډکول

**خوږينونګ**:- (خو+ږي+ن+وَ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و- خوږينونه

**خوږينونه**:- (خو+ږي+ن+و+نه) (پ، حمص) (۱)خوږينونګ، ګليا کونه، زيات پخونه، ډېر نرمونه (۲)زړۀ د تاؤ نه ډکونه

**خوږينوونکے**:- (خو+ږي+نَ+وُ+ن+کے) (پ، اس، فا، مذ، وا، ج: خوږينوونکي مؤ: خوږينوونکې) (۱)ګليا کوونکے، ډېر نرموونکے، زيات پخوونکے (۲)زړۀ د تاؤ نه ډکوونکے

**خوږينېدل**:- (خو+ږي+نې+د+ل) (پ، مص، لا) (۱)ګليا کېدل، ډېر نرمېدل، زيات پخېدل (۲) زړۀ د تاؤ نه ډکېدل

**خوږينېدنګ**:- خو+ږي+نې+دَ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خوږينېدنه

**خوږينېدنه**:- (خو+ږي+نې+د+نه) (پ حمص) (۱)خوږينېدنګ، ګليا کېدنه، ډېر نرمېدنه، زيات پخېدنه (۲) زړۀ د تاؤ نه ډکېدنه

**خوږينېدوُنکے**:- (خو+ږي+نې+دُو+ن+کے) (پ، مف، مذ، وا، ج: خوږينېدوُنکي مؤ: خوږينېدوُنکې) (۱)ګليا کېدوُنکے، ډېر نرمېدوُنکے، زيات پخېدوُنکے (۲) ډېر سُوځېدوُنکے

**خوزکه**:- (خو+ز+کَه) (پ (اورک) اس، مؤ، وا، ج: خوزکي) توته کرکے

دا پـــه خوئ لکـــه خوزکه بې ضرره پاکدامن

د چنار غونډې ئې ونه د ګلاب غندے ئې رنګ (صادق الله)

**خوژلرکے**:- (خو+ژ+لَ+ر+کَے) (پ (ګن) اس، مذ) خوږه وله، خوږه ولے، مُلټې

**خوژه خوره**:- (خ+و+ژَه+خ+و+رَه) (پ (ګن) اس، مؤ) و - خوږوُنکے دانه

**خوژينه**:- (خ+و+ژي+نَه) (پ (ګن) ص، مؤ) خوږلت، خوږ والے

**خوږ**:- (خو+ږ يا ګ) (پ، ص، مذ، وا، ج: خوارۀ (مؤ وا: خوږه ج: خوږي) د ترېخ ضد، هغه څيز چې خوند ئې خولۀ کښې ښۀ لګي، شيرين

**خوږه ژبه په خولۀ کښې ورکول**:-اص، چا سره دوکه او ټګي کول

**خُوږ**:- (خُو+ږ يا ګ) (پ، ص، مذ) (۱)پرهر ژلے، زخمې، (۲) درد، مرض (۳) همدردي

ـــــ **نۀ لرل**:-اص، درد نۀ لرل، زړۀ سوے نۀ لرل، په چا زړۀ نۀ سوځولے کېدل

**په خُوږو اخته کېدل**:-اص، په مرض کښې ګېرېدل، په تکليف او کړان اَوړېدل

**تر خوږ کوتې نيول**:-اص، د چا د ناچارۍ نه نا جائزه فائده اخستل، په چا زور زياتے کول

**د چا په خُوږ ګوته ميتازې نۀ کول**:-اص، د چا سره هېڅ قسم ته همدردي نۀ کول، ډېر زياته خود غرضي ښکاره کول

**خوږ ژبے**:- (خو+ږ يا ګ+ژبا ج+بے) (پ، اس، ص، مذ، وا، ج: خوږ ژبي) چې ژبه ئې خوږه وي، چې ښے خوږے پستے خبرې کوي، خوږ زبان

**خوږ ښانکے**:- (خو+ګ+ياژ+خا يا شا +نَ+کَے) (پ (سو) اس، مذ) د کوژدن نه پس د جينۍ د کور خلق چې د هلک کره څۀ خواږه وړي

**خوږک**:- (خ+و+ژَ يا ګ+ک) (اَف:پ (قاموس) اس، مذ) د اُوبـو يـو چيچُونکے چينجے چې ضرر ترے رسېږي

**خوږ کمبرے**:- (خو+ژ يا ګ+ک+م+ب+رے) (اَف:پ (قاموس) اس،ص، مذ) سنتره

**خوږکے**:- (خ+وَ+ژَ يا ګ+کَے) (پ، اس مذ) شاتيتکه

**خوږلت**:- (خُو+ژ ياګ+لَ+ت) (پ، ص، مذ) خوږ والے، شيريني

**خُوږلن**:- (خُو+ژ يا ګ +ل+ن) (پ، اس، مذ) ايره خول، تودے ايرے

هېڅ اعتبار راباندے نۀ شي د خوبانو

که مندېم ورته په اور يا په خوږلن لاس (علي خان)

**خوږلن**:- (خو+ژ يا ګ+ل+ن) (پ،ص، مذ) لږ شان خوږ، خوږ والے

**خوږلني**:- (خوږ+ل+نِي) (اَف:پ (قاموس) اس، مؤ) خوږلن والے، شيرين، خوږ لت

**خوږ لوړے**:- (خو+ژ يا ګ+لو+ړَے) (پ، ص، مذ، وا، ج: خوږ لوړي مؤ: خوږ لوړي) لږ شان خوږ

**خُوږم**:- (خُو+ژ يا ګ +م) (اَف:پ (قاموس) اس، مذ) د چانښل ګل

**خوږمن**:- (خ+و+ژ يا ګ+م+ن) (پ، اس، ص، مذ (مؤ، وا: خوږمنه ج: خوږمني) (۱)دردمن، همدرد (۲) زخمي

د هغه وخت په شان بيا په زړۀ خوږ من چې نۀ شم

په آخري عمر کښې بيا په زړۀ غمجن چې نـۀ شم (شمس الزمان شمس)

(۳)خوږې او پستې خبرې کوونکے

**خوږمې**:- (خو+ژ ياګ+مې) (اَف:پ د قاموس) اس،مؤ) يو خوږ خوندے بُوټے چې د سپرلي په اولو ورځو کښې راټوکېږي

**خوږوالے**:- (خو+ژ يا ګ+وا+لے) (پ، ص، مذ)، و - خوږلت

**خوږ وبے**:- (خ+و+ژو يا ګو+بَے) (اَف:پ (قاموس) اس،مذ وا، ج: خوږولي) (۱)شربت، خوږ خوندے (۲) د ختکو په سيمه د يو کلي نوم

**خوږوکه**:- (خ+و+ژُو يا ګُو+که) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) شيرين، خوږ والے

**خوږول**:- (خ+و+ژ يا ګ +و+ل) (پ مص مت) (۱)خوارۀ وراچول، شيريني په کښې ګډول (۲)په خبره کښې خوند پيدا کول (۳)په سودا کښې لږ شان زيات څيز ورکول

**خُوږول**:- (خُو+ژياګ+و+ل) (پ، مص مت) (۱)زخمې کول، پرهر ژلے کول، ژوبلول (۲)دردول، زور ورکول، آزار رسول

**خوږونګ**:- (خو+ژياګ+وَ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خُوږونه

**خُوږونګ**:- (خُو+ژياګ+و+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خُوږونه

**خوږونه**:- (خو+ژياګ+و+نه) (پ، حمص) (۱)خوږونګ، خوارۀ وراچوعنه، شيريني پکښے ګډونه (۲)په خبره کښې خوند پيدا کونه

**خُوږونه**:- (خُو+ژ يا ګ +و+نه) (پ حمص (۱) خُوږونګ، زخمي کونه، ژوبل کونه، پرهر ژلے کونه (۲)دردونه آزار ور رسونه، زور ورکونه

**خوږوونکے**:- (خو+ژياګ+وُو+ن+کے) (پ، اس، فا، مذ، وا، ج: خوږووُنکي مؤ: خوږووُنکې) (۱)خوارۀ وراچوونکے، شيريني پکښے ګډوونکے (۲)په خبره کښې خوند پيدا کوونکے (۳) په سودا کښې لږ شان زيات څيز ورکوونکے

**خُوږووُنکے**:- (خُو+ژياګ+وُو+ن+کے) (پ، اس، فا، مذ، وا، ج: خُوږووُنکي، مؤ: خوږووُنکې) (۱)زخمي کوونکے، ژوبل کوونکے (۲) دردوونکے، آزاروونکے

**خوږه**:- (خ+و+ژَه يا ګـه) (پ، اس، مؤ، وا، ج: خوږي) (۱)د خوږ مؤنث (۲) چيچي، خولۀ اخستنه

**خوږه خولے**:- (خو+ژَه يا ګـه+خُ+لے) (پ (ب،خ) اس،ص، مذ، وا، ج: خوږه خُلي) په خوږو عادت، د خوږو شوقين

**خوږه کاسه**:- (خوږه+کا+سَه) (اَف:پ (قاموس) اس، مؤ) (۱)خوږه ټُوټيئے، خوږ لوښے (۲)ښينه ارته، د زُوم ښينه ازادېدنه، د وادۀ نه وړاندې او د کوژدنې نه پس زُوم ته د خُسر خوا ښکره د تلو راتلو اجازه

**خوږه کې خرې**:- (خ+و+ژه يا ګـه +کي+خ+رې) (اَف:پ (قاموس) اس، مؤ) يو

بوټے چې سپين گُل لري او څانگېئې ازغنې وي او د وېخ پوستکے ئې سُور وي

**خوږه لماړې**:- (خ+و+ژَه يا گه +ل+ما+ړې) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ، وا، ج: خوږې لماړې) د گډې غُليانځ چې د معدے سره يو ځاے وي

**خوږه لُوړے**:- (خ+و+ژۀ يا گه+لو+ړے) (اَف:پ (قاموس) اِس،ص، مذ، وا، ج: خوږه لوړي مؤ: خوږه لوړې) خوږ، خوږ خوندے

**خوږه لوړے**:- (خو+ږه+لُو+ړَے) (اَف:پ (خ) اِس، ص، مذ) ډېر خوږۀ خوړونکے، خُوږه خُلے، په خوږو عادت

**خوږه والا**:- (خ+و+ژۀ يا گه+وا+لا) (پ، اِس، ص، مذ) خوارۀ خرڅوُونکے

**خوږه وله**:- (خ+و+ژَه يا گه+و+لّه) (پ، اِس، مؤ) خوږه ولې، خوژ لرگے

**خوږه ولې**:- (خ+و+ژَه يا گه +و+لې) (پ، اِس، مؤ) و - خوږه وله

**خوږېدل**:- (خ+و+ژې يا گې +د+ل) (پ، مص، لا) (۱)خوږ کېدل، خوند بنۀ کېدل (۲) تعلقات بنۀ کېدل

**خُوږېدل**:- (خِپو+ژې يا گې+د+ل) (پ، مص، لا) زخمې کېدل، ژوبل کېدل، پرهر ژلے کېدل

**په چا خُوږېدل**:-اص ، په چا زړۀ دردېدل، د چا مدد کول

**خوږېدنگ**:- (خو+ژې يا گې +د+ن+گ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خوږېدنه

**خُوږېدنگ**:- (خُو+ژې يا گې+د+ن+گ) (اف:پ (قاموس) حمص) و - خُوږېدنه

**خوږېدنه**:- (خو+ژې يا گې +د+نه) (۱) خوږېدنگ، خوږ کېدنه، خوند بنۀ کېدنه (۲)چا سره تعلقات بنۀ کېدنه

**خُوږېدنه**:- (خُو+ژې يا گې +د+نه) (پ، حمص) خوږېدنگ، زخمې کېدنه، ژوبل کيدنه، پرهر ژلے کېدنه، په چا زړۀ دردېدنه

**خوږېدونکے**:- (خو+ژې يا گې +دُو+ن+کَے) (پ، مف، مذ، وا، ج: خوږېدونکي مؤ: خوږېدونکې) (۱)خوږ کېدونکے، خوند بنه کېدونکے (۲) چا سره تعلقات بنۀ کوونکے

**خُوږېدونکے**:- (خُو+ژې+يا گې + دُو+ن+کَے) (پ، مف، مذ، وا، ج: خوږېدونکي، مؤ: خُوږېدونکې) زخمې کېدونکے، ژوبل کېدونکے، پرهر ژلے کېدونکے

**خوږېدۀ**:- (خو+ژې يا گې +دۀ) (پ حمص) (۱)خوند بنۀ کېدۀ (۲) چا سره تعلقات بنۀ کېدۀ

**خُوږېدۀ**:- (خُو+ژې يا گې +دۀ) (پ، حمص) زخمې کېدۀ، ژوبل کېدۀ، پرهر ژلے کېدۀ

**خُوسا**:- (خُو+سا) (اَف:پ (قاموس) ص، مذ) گنده، سخا، بد بويه

**ـــ کول**:-اص ، سخا کول، گنده کول، بد بويه کول

**ـــ کېدل**:-اص ، سخا کېدل، گنده کېدل، بد بويه کېدل

**خُوساتوب**:- (خُوسا+تو+ب) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ) خُوساوالے، سخاتوب، گنده توب، بد بوي

**خُوسا خولے**:- (خُوسا+خ+و+لے) (اَف:پ (قاموس) اِس، ص، مذ وا، ج: خوسا خولي مؤ: خُوساخولې) سخا خُلے ، چې د خولې نه ئې بوي ځي

**خُوسا سارمه**:- (خُوسا+سا+ر+مَه) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ) يو قسم بوټے چې خوند ئې خوږ وي

**خُوسا کانړے**:- (خُوسا+کا+ن+ړے) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ) يو قسم نرم کانړے چې لوښي ترے جوړولے شي

**خُوساوالے**:- (خُوسا+وا+لے) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ) و - خُوساتوب

**خوساوزه**:- (خُوسا+وُ+زَه) (پ (ظفر) اِس، مؤ) خوشاوزه، خوساوژه، د لُوخے په شان بوټے چې په ولو کښې کېږي، د جرړو خوند ئې ډېر خراب وي او په داروگانو کښې استعمالېږي

**خُوساوزه**:- (خُوسا+و+زه) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ) خوساوژه، خوشاوزه

**خُوساوژه**:- (خُوسا+و+ژه) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ) و -خُوساوزه

**خوسانبې**:- (خُوسا+ شَے يا خَے) (پ (ظفر) اِس، مؤ) شين تېغ، يو قسم مارغۀ

**خوس خوس**:- (خ+و+س+خ+و+س) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ) يو قسم د جوارې لوبه

**خُوسکے**:- (خُو+س+کَے) (اَف:پ (قاموس) ا،س،مذ، وا، ج: خوسُکي مؤ: خوسکې) سخے، سخندر

**خوسندر**:- (خُو+س+ن+د+ر) (پ، اِس، مذ) سخندر، د غوا نر بچے چې لړ لوے شي

**خُوسوے**:- (خُو+سُو+ے) (اَف:پ (قاموس) اِس،مذ) خوشوئ، خشوے، غوشايه

**خُوسے**:- (خُو+سَے) (پ (ظفر) اِس، مؤ) آسمان چکالے، ماښام چکالے، ښاپېرک

**خُوسے**:- (خو+سے) (پ ، ص) (۱)آزاد ، يله، خوشے (۲)وړيا ، ليه، مفت بې بيعه (۳)عبث بې بوده خبرې

**ـــ کول**:-اص ، آزادول، خوشے کول، پرېښول

**ـــ گرزېدل**:-اص ، خوشے گرځېدل، بې کاره گرځېدل

**ـــ ورکول**:-اص ، بې بيعه ورکول، مفت ورکول، ليه ورکول

**خُوسے**:- (خُو+سے) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ، وا، ج: خوسي) (۱)سخے ، د غوا بچے (۲)يوه لوبه چې يوه پښۀ په لاس نيولے په گوډ گوډک د بل ملگري سره لاس اچوي

**ـــ کول**:-اص ، د خوسي لوبه کول

**خوشاتارے**:- (خو+شا+تا+رَے) (پ،اِس، مذ، وا، ج: خوشاتاري) خوشاتنگ، خوشاتړ، خوشکے، خوشے، آواره، فضول، يله

**خوشاتړ**:- (خو+شا+تَ+ر) (پ، اِس ص، مذ) و - خوشاتارے

**خوشاتنگ**:- (خو+شا+تَ+ن+گ) (پ، اِس،ص، مذ) و - خوشاتارے

**خوشال**:- (خ+و+شا+ل) (فا: خوشحال، پ، ص، مذ، (مؤ، وا: خوشاله ج: خوشالي) خوښ، په طبع کښې، په مزه کښې

**خوشالتوب**:- (خوشال+تو+ب) (پ، اِس، مذ) خوشالتيا، د زړۀ خوشالي

**خوشالتيا**:- (خوشال+ت+يا) (پ، اِس، مؤ) و - خوشالتوب

**خوشالول**:- (خ+و+شا+ل+و+ل) (پ، مص، مت) خوشحالول، خوشول، د زړۀ ښه کول

**خوشالونه**:- (خ+و+شا+و+نه) (پ، حمص) خوشحالونه، خوشونه، د چا زړۀ ښۀ کونه

**خوشالوونکے**:- (خ+و+شا+ل+وُو+ن+کَے) (پ، فاع، مذ، وا، ج: خوشالوونکي مؤ : خوشالوونکې) خوشحالوونکے، خوشوونکے، د چا زړۀ ښۀ کوونکے

**خوشالي**:- (خ+و+شا+لي) (پ، اِس، مؤ) خوشحالي، خوښي

زۀ دې پــــه لمبو د جدائي کښې سوځيدلے يم
شال د خپل وصال د خوشحالۍ راباندې واچوه (شمس الزمان شمس)

**ـــ کول**:-اص ، خوشحالي کول، خوښي کول، خوشحالېدل

**خوشالېدل**:- (خ+و+شا+لې+د+ل) (پ، مص، لا) خوشحالېدل، خوشېدل، زړۀ ښۀ کېدل

**خوشالېدنه**:- (خ+و+شا+لې+د+نه) (پ، حمص) خوشحالېدنه، خوشېدنه، زړۀ ښۀ کېدنه

**خوشالېدونکے**:- (خ+و+شا+لې+دُو+ن+کَے) (پ، مف، مذ، وا، ج: خوشالېدونکي مؤ: خوشالېدونکې) خوشحالېدونکے، خوشېدونکے،

زړهٔ ښهٔ کېدوُونکے

**خوشـاوزه**:- (خُو+شـا+و+زه) (اَف:پ (قـاموس) اِس،مـؤ، وا، ج: خوشـاوزي) و - خوساوزه

**خوشبوي**:- (خُو+ش+بُو+ ي) (فا، اِس، مؤ، وا، ج: خوشوبي) خوږ بوي، ښهٔ بوي

**راتلل**:-اص ، خوږ بوي راتلل، ښهٔ بوي راتلل

رامعلومېږي چې په چمن کښې ګرځېدلے دے یار

چې خوشبوي رالـــه نـــن د هـر یو ګلَ راځي (شمس الزمان شمس)

**ـــــ کول**:-اص ، ښهٔ بوي کول، خوږ بوي کول

**خُوشت**:- (خُـو+ش+ت) (پ، ص مـذ (مـؤ، وا: خُوشـته ج: خُوشـتي) خويشـت، خيشت، لُوند، په اوبو کښې لت پت

**خوشـــخميره**:- (خ+و+ش+خ+مـــي+ره) (اَف:پ (قـــاموس) اِس مـــؤ، وا ،ج: خوشخميري) خميره ډوډۍ، کُلچه

**خوشدل**:- (خُو+ش+دي+ل) (فا، ص، مذ) د خوشحال زړهٔ خاوند، خنده رويه

که مدام په خوشدلي خوشدل ببدل وۀ

بې مجـال ملال زندان ته شه روان چپ

**خوشدلي**:- (خُو+ش+دِ+لي) (فا، اِس، مؤ) خوشحالي، د زړهٔ خوشي

**خـوش طبـع**:- (خُـوش+طَ+بَ+ع) (پ، ص) خـوش ارواحـه، خـوش بطبيعتـه، خوش مزاجه، خنده رويه

**خوش طبيعته**:- (خُوش+طَ+بِي+عَ+تَه) (پ، ص) و - خوش طبع

**خُوشـکه**:- (خُو+ش+کـه) (اَف:پ (قـاموس) ص) (۱)بـې فائـدې، بـې مطلبـه (۲) بغېر مسالے او غوړو پخې کړې وريځې

**خُوشکه**:- (خُو+ش+کَه) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ) غصّه، قهر، کاوړ

**کول**:-اص ، غصّه کول، قهر کول، کاوړ کول

**خوشـکے**:- (خُـو+ش+کَے) (پ، اِس، ص، مـذ، وا، ج: خوشـکي مـؤ: خوشـکې) و - خوشاټارے

**خوشکي**:- (خ+و+ش+کي) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ) نرم کاغذ

**خُشکيان**:- (خُو+ش+ک+يا+ن) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ) عام خلق، اُولس

**خوشکيت**:- (خ+و+ش+ک+يَ+ت) (اَف:پ (قـاموس) اِس، مـذ) (۱)قهـر، غصّـه کاوړ، (۲) خشکي، وچوالے

**ـــــ کول**:-اص (۱)قهر کول، غصّه کول، (۲) وچېدل

**خـو شـکيتي**:- (خ+و+ش+ک+يَ+تي) (اَف:پ (قـاموس) اِس، ص) غصّـه نـاک، قهرجن، تريخ

**خوشلاړي**:- (خُو+ش+لاَ+ړي) (اَف:پ (قـاموس) اِس جمـع) نـرم، غوشـائې، لمدے سرې

**خوشـلړ**:- (خُـو+ش+لَ+ړ) (اَف:پ (قـاموس) اِس، ص، مـذ) (۱)ختے او غوشـايۀ سره ګډ وډ (۲) جنجال

**خُوشـړې**:- (خُـو+ش+م+ړي) (اَف:پ (قـاموس) اِس، مـؤ) نغـدې پيسـې، نغـد دولت

**درلودل**:-اص ، نغدې پيسې لرل، نغد مال لرل

**خوش مزاجه**:- (خُوش+م+زا+جَه) (پ، ص) و - خوش طبع

**خُوشوے**:- (خُو+شُو+ے) (پ، اِس، مذ) و - خوشئے

**خوشئ**:- (خُو+شيئ) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ) د ماشي په شان يوه حشره

**خوشے**:- (خ+وَ+شَے) (پ، ص) (۱)بيهوده، عبث، بې فائدې، بې ځايه

کـــه ميـــنه حُسن او مستي نـــهٔ وي

بيا خو ژوند پټې خوشے جنجال دے (اشرف مفتون)

(۲)آزاد، پرېښے (۳) مفت، ليه (۴)بواځې، بې ملګريه

**خوشېپرېښول**:-اص (۱)آزاد پرېښول (۲)بواځې پرېښول

**ـــــ خبرې**:-اص ،عبث خبرې، فضولېخبرې، بې مقصده خبرې، بې مطلبه خبرې

راځۍ چې اوکړو د جانان خبرې

پرېږدۍ دا خوشے د جهان خبرې (شمس الزمان شمس)

**ـــــ کول**:-اص ، ازادول، پرېښول، رها کول، خلاصول

**ـــــ کېدل**:-اص ، آزادېدل، خلاصېدل، رها کېدل

**ـــــ ګډېدل**:-اص ، بې ځايه او بې موقعے په خبره کښې ځان ورګډول، بې وقره خبرې کول

**ـــــ ګرځېدل**:-اص ، بېکار ګرځېدل، بې روزګاره ګرځېدل، فضول اوړېدل، را اوړېدل

**ـــــ مخ نيول**:-اص ، شرمندلے کښېناستل

**ـــــ ورکول**:-اص ، مفت ورکول، ليه ورکول، بې پيسو ورکول

**ـــــ ويل**:-اص ، دروغ وئيل

**خوشے**:- (خو+ شَے) (پ، اِس، ص، مذ، وا، ج: خوشي) و - خوشاټارے

**خُوشي په خُوشي**:- (خُو+شي+په +خُو+شي) (اَف:پ (قاموس) ص) ليـه پـه ليـه ، بې پيسې بې ټکې

**خُوشيتوب**:- (خُو+شے+تو+ب) (پ، اِس، مذ) (۱)خُوشي والے، بېکاري، ليـه توب، عبث ګرځېدل

روان دوان ئې دغـــــه دے ژونـد دے

دے خوشي توب کښې دے څومره خوند دے (ظفر کاکاخېل

(۲)خلاصي، رهائي

**خوشے والے**:- (خُوشے +وا+لے) (پ، اِس، مذ) و - خُوشي توب

**خوښ**:- (خ+وَ+ش+يا خ) (پ، ص، مذ (مؤ، وا: خوښه ج: خوښي) (۱)خوش، خوشحاله، خوشاله (۲)زړهٔ ته نژدې، غوره

ټپه: که مېړنې شوې خوښ مې نهٔ شوې

مېړني تل د خندنو دلاسه مرينه!

**خوښتوب**:- (خو+ښ+تو+ب) (پ، اِس، مذ) خوښتيا، خوښوالے، خوښېدنه

**خوښتيا**:- (خوښ+ت+يا) (پ، اِس، مؤ) خوښتوب، خوښوالے

**خوښـمن**:- (خـوښ+م+ن) (پ، اِس،ص، مـذ (مـؤ، وا : خوښـمنه ج: خوښـمني) خوښووُنکے، انتخاب کووُنکے، غوره کووُنکے

**خوښوالے**:- (خوښ +وا+لے) (پ، اِس، مذ) و - خوښتوب

**خوښول**:- (خ+و+ش+يا خ+و+ل) (پ، مص، مت) (۱)غوره کول، چُوڼ کول (۲) خوشحالول

**خوښونګ**:- (خ+وَ+ش+يا خ+وَ+ن+ګ) (اَف: (قاموس) حمص) و - خوښونه

**خوښـونه**:- (خ+وَ+ش يـا خ+و+نـه) (پ ، حمـص) (۱)غـوره کونـه، چُـوڼ کونـه، (۲)خوشحالونه

**خوښووُنکے**:- (خ+وَ+ش يا خ +وُو+ن+کَے) (پ، اس، فا، مذ ،وا، ج: خوښوونکي مؤ : خوښووُنکې) (۱)غوره کووُنکے، چُوڼ کووُنکے، (۲)خوشحالووُنکے

**خوښه**:- (خ+وَ+شَه يا خَه) (پ، اِس، مؤ) رضا، مرضي، خوښي

زما اخلاص زما قصور دے آشنا

څـهٔ چې دے خوښه وي سزا راکوه (شمس الزمان شمس)

**خپله خوښه** :-اص ، خپله مرضي، خپل خواهش، خپله رضا

**خوښـــې**:- (خ+وَ+شـــي يـــا خـــي) (پ، اِس، مـــؤ) (۱)مرضـــي، رضـــامندي (۲) خوشحالي

**خُوښے**:- (خُو+شے+ يا خَے) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ) د وادهٔ خرڅ

**خوښېدل**:- (خ+وَ+شي يـا خي +د+ل) (پ ، مـص ، لا) (۱)پسـند کېـدل، غـوره کېدل، (۲) خوشحاله کېدل

**خوښېدنګ**:- (خ+وَ+شـېِ یـا خـېِ+دَ+ن+ګ) (اَف:پ (قـاموس) حمـص) و - خوښېدنه

**خوښېدنه**:- (خ+وَ+شېِ یا خېِ + د+نه) (پ، حمص) (۱)غوره کېدنه، پسند کېدنه (۲)خوشحالېدنه

**خوښېدُونکې**:- (خ+وَ+شېِ یا خېِ +دُو+ن+کَې) (پ، اس، مف، مذ، وا، ج: خوښېدُونکي مؤ: خوښېدُونکې) (۱)غوره کېدُونکې، پسند کېدُونکې، (۲) خوشحالېدُونکې

**خوښېدهٔ**:- (خ+وَ+شېِ یا خېِ +دهٔ) (پ، حمص) (۱)خوښېدنه، غوره کېدنه (۲) خوشحالېدهٔ

**خوښینه**:- (خُو+شيِ+یا خيِ+نه)(پ (ظفر) اِس، مؤ، دا، ج: خوښینې، خوښیانې) ښینه، شخینه، د ښځې خور

**خُوغاړه**:- (خُو+غا+ړه) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ) غوټۍ، کلۍ

**خُوکه**:- (خُو+کَه) (پ (بن) ا،س، مؤ، وا، ج: خُوکي) مخوکه، منوکه

د روباهي ئې خوي به زده نهٔ کړې

دې د پاره یوه زانې خوکه بس ده (جعفر حسین شاه رېښتونې)

**خوګلن**:- (خُو+ګ+ل+ن) (پ،اس، مذ) ایره خول، ګرمه ایره.

زهٔ په دوست نما په دښمن او غلېدم جلیا شوم

ښنه مې په ایرو اېښوده بوخته په خوګلن شوه (علي خان)

**خول**:- (خو+ل) (پ،اس، مذ، وا، ج: خولُونه) (۱)د اوسپنې ټوپۍ چې د جنګ په وخت کښې پکارېږي، خود (۲)د کارتوس ټوپۍ یا پټاخه

**خُول**:- (خُو+ل) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ) یو قسم بوټې چې اوبهٔ ئې په پرهر لګولې شي

**خولبورې**:- (خُو+ل +بو+رې) (اَف:پ (قاموس) اِس،مذ وا، ج: خولبوري) خُولپوټې د شیشې یا صراحۍ د خولې پوړې یا کاک، سر پوش

**خُولبول**:- (خُو+ل+بو+ل) (اَف:پ (قاموس) ص، مذ) مېده مېده، پوست، ډېر نرم

ـــ **کول**:-اص، ډېر مېده کول، پَستول، نرمول

ـــ **کېدل**:-اص، ډېر مېده کېدل، پستېدل، نرمېدل

**خولپوټې**:- (خُو+ل+پُو+ټې) (پ، اس، مذ، وا، ج: خُولپوټي) (۱)خاموش، غلې، خُولپورې (۲) و - خُولبورې

**خُولپورې**:- (خُو+ل+پو+رې) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ، وا، ج: خولپوري) و - خُولپوټې

**خُولتیرې**:- (خُو+ل+تسې +رې) (اَف:پ (قاموس) اِس، ص، مذ) بڼه خُلې، بې واکه، ړغېدُونکې

**خُولخوټکه**:- (خُو+ل+خُو+ټَ+کَه) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ،وا، ج: خُولخوټکې) خوپنۍ، بُوړ بوړۍ، بړبُوړکۍ

**خُولخورې**:- (خُو+ل+خُو+ژې یا ګې) (پ، اس، ص، مذ وا، ج: خُولخوري مؤ: خولخوږې) هغه څوک چې د خولې نه ئې سخا بوي ځي، سخا خُلې

**خُولخوږې**:- (خُو+ل+خُو+ژې یا ګې) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ) دخولې بد بوي

**خُول خُول**:- (خُو+ل+خُو+ل) (اَف:پ (قاموس) اِس،مذ) و - خرخول

**خولخونده**:- (خ+و+ل+خ+وَ+ن+ده) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ ،وا، ج: خولخوندې) مېوه

**خُولکۍ**:- (خُو+ل+کۍ) (اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ) یو قسم واښهٔ چې اکثر د ویلې په غاړه کېږي

**خُولکې**:- (خُو+ل+کَې) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ، وا، ج: خولکي) د اور تیلې، د ګوګړو، تیلې، اور لګیت

**خولګۍ**:- (خ+و+ل+ګۍ) (پ، اِس تصغیر، مؤ) (۱)دخولې اسم تصغیر،

وره خولهٔ

جانان زما په خولګۍ مړ دې

عالمه مهٔ ئې لمبوئ چې شهید شونه!

(۲)مچه، چپي، بوسه، چومي

ـــ **اخستل**:-اص، مچه اخستل، چپي اخستل، بوسه اخستل.

ـــ **ورکول**:-اص،مچه ورکول، چپي ورکول، بوسه ورکول

**خـولم**:- (خ+و+ل+م) (اَف:پ (قـاموس) ص،مذ (مؤ، وا، خولمه ج: خـولمي) (۱)لړلې، تیلې، ککړ، (۲) آوار

**خولم پلم**:- (خ+و+ل+م+پ+ل+َم) (اَف:پ (قاموس) ص،مذ، مؤ: خولمه پلمه) په وینو لړې، په وینو ککړ

**خولمتـوب**:- (خ+و+ل+م+تـو+ب) (اَف:پ (قـاموس) اس،مـذ) (۱)خولمتیـا، خولموالې،په وینو لړلې کېدل (۲)اَورتیا، اَورولې

**خولمتیا**:- (خ+و+ل+م+ت+یا) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ) و - خولم توب

**خولموالې**:- (خ+و+ل+م+و+ل+لې) (اَف:پ (قاموس) اِس، مذ) و - خولم توب

**خولمـول**:- (خ+و+ل+م+و+ل) (اَف:پ (قـاموس) مـص، مت) (۱)پـه وینو لړل، په وینو ککړول (۲) اَوارول

**خولمونه**:- (خ+و+ل+م+و+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) (۱)په وینو لړنه، پـه وینو ککړونه، (۲) اَوارونه

**خولموونکې**:- (خ+و+ل+م+وُو+ن+کـې) (اَف:پ (قـاموس) فـا، مـذ وا، ج: خولمـوونکي، مـؤ: خولمـووُنکې) (۱)پـه وینـو لـړوُنکې، پـه وینـو ککړوُنکې (۲) اواروُونکې

**خولمېدل**:- (خ+و+ل+مـې+د+ل) (اَف:پ (قـاموس) مـص، لا) (۱)پـه وینـو لـړې کېدل، په وینو ککړېدل (۲)اَوارېدل

**خولمېدنه**:- (خ+و+ل+مې+د+نـه) (اَف:پ (قـاموس) حمـص) (۱)پـه وینـو لـړلې کېدنه، په وینو ککړېدنه، (۲) اَوارېدنه

**خولمېدُونکې**:- (خ+و+ل+مـې+د+و+ن+کې) (اَف:پ (قـاموس) مف، مـذ، وا، ج: خولمېـدُونکي مـؤ: خولمېـدُونکې) (۱)پـه وینـو لـړلې کېـدُونکې، ککړېدُونکې، (۲) اَوارېدُونکې

**خولن**:- (خ+وَ+ل+ن) (پ ص مذ (مؤ وا: خولنه ج: خولني) خولې، خولې

ـــ **کول**:-اص، خولې خولې کول

ـــ **کېدل**:-اص، خولې خولې کېدل

**خُولنګ**:- (خُو+لَ+ن+ګ) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) فریا، زاري، ژړا انګولا

**خولنګول**:- (خُو+لَ+ن+ګ+و+ل) (اَف:پ (قـاموس) مـص مـت) ژړول، پـه جغـو نارو سر کول، په ژړا کول

**خولنګونه**:- (خُو+لَ+ن+ګ+و+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) ژړونه، په چغو نارو سرکونه، په ژړا کونه

**خولنګووُنکې**:- (خُو+لَ+ن+ګ+وُو+ن+کَې) (اَف:پ (قـاموس) فـاع مـذ وا ج: خُولنګووُنکي مؤ: خُولنګووُنکې) ژړووُنکې، په چغؤ نارو سر کووُنکې

**خولنګېدل**:- (خُو+لَ+ن+ګې+د+ل) (اَف:پ (قاموس) مص لا) په ژړا سر کېدل په چغو کېدل

**خُولګېدنه**:- (خُو+لَ+ن+ګې+د+نـه) (اَف:پ (قـاموس) حمـص) پـه ژړا سـرکېدنه، په چغو کېدنه

**خـولنۍ**:- (خـو+ل+نۍ) (اَف:پ (قـاموس) اس مـو) یـو غرنـۍ بُـوټې چـې د چنې هورمره مېوه کوي، هغه وریتولې او خوړلې شي

**خُولوانبې**:- (خُو+ل+وا+نبې یـا خـې) (پ اس مـذ وا ج: خولوانبي) خُولوندونې د بورۍ د خلې د تړلو پړې

**خُولـول**:- (خُـو+ل+و+ل) (اَف:پ (قـاموس) مـص مـت) (۱)ټکـول (۲) نچـوړول،

نشتېجل

**خُلوندونے**:- (خُو+ل+وَ+ن+دُو+نے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ وا ج: خولوندوني) و - خُولوانيے

**خُلولونه**:-(خُو+ل+و+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) (۱)ټکونه (۲) نچوړونه، نشپتجنه

**خُولونے**:- (خُو+لُو+نے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) يو قسم خر وابنۀ

**خوله**:- (خ+و+لَه) (پ اِس مؤ وا ج: خولي) (۱)خوېله، هغه اوبۀ يا لوندوالے چې د ګرمۍ د وجهے د وجود نه را وځي (۲) يو قسم وابنۀ

**ـــ بندېدل**:-اِص ، په بدن خوله نۀ راوتل، بيمارېدل

**ـــ وُچول**:-اِص ، دمه کول، ساه صورت کېدل

**ـــ وچېدل**:-اِص ، ساه صورت کېدل، دمه کېدل

**ـــ ويستل**:-اِص ، خوله بهول، ځان سترے کول، ورزش کول

**په خوله کښې باد وهل**:-اِص ، تود سوړ کېدل

**په خولو کښې ډوب** :-اِص ، (۱) په خولو کښې جب جُوب، ډېر يزات خولے شوے (۲) شرمېدلے

**په خولو کښې جب جُوب**:-اِص ، و – په خولو کښې ډُوب

**خولې بهېدل**:-اِص ، خولے څڅېدل، خولې شړکېدل، ډېر خولې کېدل

**خولې تلل**:-اِص ، (۱)خولې وتل، په بدن خولې رابهېدل (۲) سترے کېدل

**خولې څڅېدل**:-اِص ، و - خولې بهېدل

**خولې خولې**:-اِص ، ډېر خولې شوے

**خولې خولې کول**:-اِص ، په خولو کښې جب جُوب کول، ډېر سترے کېدل

**خولې راتلل**:-اِص (۱)خولې کېدل، خولې کېدل (۲) شرمېدل

**خولې راماتېدل**:-اِص ، په بدن خولې راڅڅېدل، خولې بهېدل

**خولې شړکېدل**:-اِص ، و - خولې بهېدل

**خولې کېدل**:-اِص ، و – خولې راتلل

**خولې ماتېدل**:-اِص (۱)خولې راتلل (۲) شرمېدل

په صورت مې شي خولې له حيا ماتې
کــــه ونان ته د افتاب څخو نظر کړم (کاظم خان شېدا)

**خولې وتل**:-اِص ، و - خولې راتلل

**خوله**:- (خ+و+لَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ وا ج: خولې) ټوپۍ، خېلې خولۍ

**خُوله**:- (خُو+لَه) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ وا ج: خُولې) هغه طلاقه کړے شوے ښځه چې خاوند ئې د طلاق نه پس د شرعے د حکم مطابق بيا په نکاح داخلې

**خوله بند**:- (خ+و+لَه+ب+ن+د) (پ ص) تود سوړ شوے

**خولۍ**:- (خ+و+لۍ) (پ اِس مؤ وا ج: خوليانې) وړه ټوپۍ، ورکوټے خېلې

متل: سر حيات خولۍ ډېرې

**آسمان ته غورځول**:-اِص ، ډېره خوشحالي کول

**په غوړو کښې لوېدل**:-اِص ،کاتر سره کېدل، مطلب پوره کېدل د ګټېکار موندل

**د مازيګر په ځاے ايښوول**:-(اف) اِص ، ټوپۍ په تندي کښېښول، کبر او غرور کول

**د خولۍ سر څيري ليدل**:-اِص ،ټوپۍ بژه ليدل، ښوک بې پړدے ليدل

**خولے**:- (خَو+لے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) د غرۀ د لمنې سپينه خاوره

**خُولې**:- (خُو+لے) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) يو سپين بُوټے چې د روژے ايا نارُونه ئې اُوړدۀ وي او ماشومان ئې خوري

**خولې خوند**:- (خُو+لې+خ+وَ+ن+د) (پ ص مذ) دخولې مزه

**د خولې خوند خرابېدل**:-اِص (۱)د خپلې زمه خرابېدل (۲) خبره خرابېدل

**خُولېدل**:- (خُو+لې+د+ل) (اَف:پ (قاموس) مص لا) ټکېدل، نچوړ کېدل، نشتحئلې کېدل

**خولېدلے**:- (خُو+لې+دَ+لے) (اَف:پ (قاموس) مف مذ وا ج: خولېدلي مؤ: خولېدلې) ټکېدلے، نچوړ کړے، نشتحئلے

**خُولېدنه**:- (خُو+لې+د+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) ټکېدنه، نچوړېدنه، نشتحئلې کېدنه

**خُولېـــدُونکے**:- (خُو+لې+دُضـــو+ن+کے) (اَف:پ (قـــاموس) مـــف مـــذ وا ج: کولېدونکي مؤ: خولېدُونکې) ټکېدوُنکے، نچوړېدوُنکے، نشتحئلې کېدوُنکے

**خُوليمول**:- (خُو+لي+مَ+و+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت) زړۀ ناقرارول

**خُوم**:- (خُو+م) (پ اِس مذ وا ج: خُومونه) خُم، مټ، د دوبيانو د رنګ ورکولو لوښے

**ـــ خراپېدل**:-اِص ، خُوم ورانېدل، د روغ خبره خورېدل

**ـــ ورانېدل**:-اِص ،و - خُوم خراپېدل

**خُومار**:- (خُو+ما+ر) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) (۱)جوش، ګرمي، (۲) بې فائدې او بې ښېګړې څيز

**نۀ په خوړل**:-اِص ،په څۀ خبره خپل طبيعت نۀ خرابول، په څۀ کار هېڅ غرض نۀ لرل

**خُوماري**:- (خُو+ما+رِي) (اَف:پ (قاموس) اسم جمع) (۱)نشه (۲) شفتالو

**ـــ سترګې**:-اِص (۱)د نشے نه ډکې سترګے (۲) ښکلے سترګے

**خومڅ**:- (خُو+مَ+تس) (پ (ښنګ) اِس مذ وا) سمڅ، غار، چيوده

**خومرې**:- (خُو+م+رې) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) (۱)د خاورو کنډول (۲) د غوا مېښے د لوېشلو کټوې

**خُومښ**:- (خُو+م+ش+يا خ) (اَف:پ (قاموس) اِس مذ) خُوپ، سخته ګرمي

**خون**:- (خُو+ن) (فا اِس مذ وا ج: خُونونه) وژل، قتل

چې يکلخته دے خوشحال له زړۀ نه ويوست
درپـــوهـېـــږم ډار دے نـۀ کـېږي لـــه خُونَ

**ـــ اخيستل**:-اِص ، وژل، مړ کول، قتل کول

که خون مې اخلے هم په لاړ ئې اخله
چې تهمتونه خو درباندے نۀ شي (پريشان خټک)

**په ختل**:-اِص ،په قاتل د قتل دهشت راتلل، د چا د وژلو نه پس يرېدل

**خون په غاړه کېدل**:-اِص ، د قتل ګناه په غاړه کېدل

**خُون**:- (خُ+و+ن) (پ اِس مذ) ښُون (داټکے په (خ) ليکل غلط دي) د ښوائۀ ونه

**خوناے**:- (خ+وَ+نا+ے) (پ (ګن) اِس مذ) د وادۀ، سنت يا د هلک د پېداوښت په موقعه خپلو خپلوانو ته ورکېدونکے شېريني خونے

**خُونبه**:- (خُو+م+بَه) (پ (ظفر) اِس مؤ وا ج: خونبې) خرېږے، د رُونے دوړنګ

**خونجــاړه**:- (خُو+ن+جا+ره) (اَف:پ (قـاموس) اِس مـؤ وا ج: خونجـاړې) زړه خيره، شلېدلے لته

**خُونڅې**:- (خُو+ن+ت+سې) (اَف:پ (قاموس) اِس مؤ) خوانچه

**خُونخوار**:- (خُون+خ+وا+ر) (فا اِس ص مذ وا ج: خونخوران (مؤ وا: خونخواره ج: خونخوارې)خُونې، ظالم

**خونخواري**:- (خُون+خ+وا+رِي) (فا اِس مؤ) ظلم، خون کونه، وژنه

د صورت وينے مې وچے لــکــــه برق شوے
خــونخواري به اوس د چا کوې خونخوارې (کاظم خان شېدا)

**خوند**:- (خ+وَ+ن+د) (پ ص مذ وا ج: خوندونه) مزه، لذت، ذائقه

پـــه خپـــل شرم ننګ راغلے
نۀ په شخوند وي نۀ په خوند (خوشحال)

ـــــ **اخيستل**:-اص (۱)مزه اخيستل
ما چې ستا د شونډو خوند واکست محفوظ شوم
کـــه تـــهٔ سل ځــله پــــه تريخ وئيل کنډېر ئي (رحمن بابا)
(۲)د چا خپل غرض پوره کول (۳) چا پورې ټوقې ملنډې کول
ـــــ **بدلېدل**:-اص (۱)مزه بدلېدل، بې مزې کېدل (۲)خبره خرابېدل، خوند بدېدل، خوند خرا بېدل، خوند ورکيدل
ـــــ **بدېدل**:-اص ، و - خوند بدلېدل
ـــــ **پرېښول**:-اص ، مزه زياتېدل، خوند ښهٔ کېدل
ـــــ **تلل**:-اص ، بې مزې کېدل، خوند بدلېدل
ـــــ **ځکل**:-اص ، ذائقه معلومول
ـــــ **خرابېدل**:-اص ، و - خوند بدلېدل
ـــــ **کتل**:-اص ، خوند معلومول، ځکل
ـــــ **کول**:-اص ، مزه کول، لذت کول، ښهٔ لګېدل
ښکلو سره دومره غصــه خوند نهٔ کړي
يـــــاره بس دے دا لاړه بـــدل له کړه (شمس الزمان شمس)
ـــــ **لرل**:-اص ، مزه لرل، اثر لرل
لکــه خـــونــد لري زما خوږې خبرې
په شکرو کنبې دے چېرته هسې خوند (رحمن بابا)
ـــــ **ليدل**:-اص ، عادت کېدل
ـــــ **وَرکول**:-اص ، مزه ورکول، لذت ورکول، ښهٔ لګېدل
ـــــ **ورکول**:-اص ، بې مزې کول
ـــــ **ورکېدل**:-اص ، و - خوند بدلېدل
ـــــ **ورکېدل**:-اص ، بې مزې کېدل
**خونـدناک**:- (خونـد+نا+ک) (پ اس ص مـذ (مـؤ وا: خوندناکـه ج: خونـدناکي) خوندور، مزېدار، ښهٔ خوند لرونکے
**خونـدنے**:- (خ+وَ+ن+د+نے) (پ ص مـذ وا ج: خونـدي مـؤ: خونـد نـې )مزېـدار، خوږ، ښهٔ خوند لرونکے
**خوندور**:-(خ+وَ+ن+د+و+ر) (پ ص مذ (مؤ وا: خوندوره ج: خوندوري)و - خوند ناک
**خونـدي**:- (خ+و+ن+د+يې) (پ ص) (۱)بنـد، سوګه، پټ ساتلے، محفوظ، سنبال (۲) قيد
ـــــ **کول**:-اص ، سنالول، سوګه کول، پټ ساتل
ـــــ **کېدل**:-اص ، سنبالېدل، سوګه کېدل، پټ ساتلے کېدل
**درخوندي کيدل**:-اص ، مړ کېدل
**خوندي توب**:- (خونـدي+تو+ب) (پ ص مـذ ) (۱)حفاظت، ژغورنـه (۲) قيـدي توب، بنديواني
**خونـدين**:- (خ+و+ن+د+يـ+ن) (اَف:پ (قـاموس) ص مـذ ) مزيـدار، لـذت نـاک، مزه ناک، خوندناک
ـــــ **کول**:-اص ، خوند ناک کول، مزه ناک کول
ـــــ **کېدل**:-اص ، خوند ناک کېدل، مزه ناک کېدل
**خوندينول**:- (خ+وَ+ن+د+يې+ن+و+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت) خوند زيـاتول، مزېدار کول، خوند ناک کول
**خوندينونه**:- (خ+وَ+ن+د+يې+نَ+و+نه) (اَف:پ حمص) خوندزياتونه، خوند نـاک کونه، مزېدار کونه
**خونـــدينووُنکے**:- (خ+وَ+ن+د+يـ+نَ+وُو+ن+کـے) (اَف:پ اس فـاع مــذ وا ج: خونــدينووُنکي مـؤ: خونــدينووُنکې) خونــدزياتووُنکے، خونــد نــاک کووُنکے، مزېدار کووُنکے
**خوندينېـــدل**:- (خ+وَ+ن+د+يې+نـې+د+ل) (اَف:پ (قــاموس) مـــص لا) خونـــد زياتېدل، مزيدار کېدل، خوندناک کېدل
**خوندينېدنــه**:- (خ+وَ+ن+د+يې+نې+د+نــه) (اَف:پ حمـص) خونــد زياتېدنــه، خوندناک کېدنه، مزېدار کېدنه
**خوندينېـــدُونکے**:- (خ+وَ+ن+د+يې+نـــې+دُو+ن+کَے) (اَف:پ مـــف مـــذ وا ج: خوندينېدوُنکي مـؤ: خوندينېدوُنکې) خونـد زياتېدوُنکے، خونـد نـاک کېدوُنکے، مزېدر کېدوُنکے
**خونړے**:- (خُو+ن+ړَے) (پ ص مذ مؤ: خونړۍ) خُونې، خُونکار، قاتل
**خُونکـار**:- (خُون+کـا+ر) (پ اس ص مـذ وا ج: خُونکـاران، مـؤ وا: خُونکـاره ج: خونکاري) خُوني قاتل
**خُونکۍ**:- (خُون+کَ+ۍ) (پ اس تصغير مؤ) ورکوټے خُونه يا ځپـره چې د فصـل يا درمندد ژغورلو د پاره جوړولې شي
**خونګټے**:- (خُون+ګ+ټے) (اَف:پ (قـاموس) اس مـذ) جـوارو د بـوټې د رُوزه يـا ډنډۍ
**خونول**:- (خُو+ن+و+ل) (اَف:پ (قاموس) مص مت) قربان کول، زارول
**خُونولے**:- (خُو+ن+وَ+لے) (اَف:پ (قاموس) مف مـذ وا ج: کونولي مـؤ: خونولې) قربان کړے، زار کړے
**خُونونه**:- (خُو+ن+و+نه) (اَف:پ (قاموس) حمص) قربانونه، زارونه
**خُونووُنکے**:- (خُو+ن+وُو+ن+کَے) (اَف:پ (قـاموس) فـاع مـذ وا ج: خونووُنکي مـؤ: خونووُنکې) قربانووُنکے، زار ووُنکے
**خُونه**:- (خُو+نَه) (پ اس مؤ وا ج: خُوني)
خيال ئې د زلفينو عقل وصـــبر ديـن او زړه وړي
نهٔ پرېږدي په کور کښې ښهٔ کالے د خُونې ګل دے (خوشحال)
(۲)ځپر، ساله، جونګړه
ـــــ **په سر اخيستل**:-اص (۱)کور په سر اخيستل (۲) ډېر شور زوږ کول
ـــــ **درنېدل**:-اص ، په کور د پېريانو اثر کېدل
ـــــ **ډګر کېدل**:-اص ، خُونه ميراتېدل
ـــــ **کښېنستل**:-اص ، کور راپرېوتل، کور راماتېدل
ـــــ **ميراتېدل**:-اص ، مړکېدل، په کور کښې څوک ژوندے نهٔ پاتې کېدل، خُونه ورانېدل، خُونه ډګر کېدل
ـــــ **ورانېدل**:-اص ، و - خُونه ورانېدل، خُونه ډګر کېدل، خُونه ميراتېدل
**خونے**:- (خو+نَے) (پ (ظفر) اس مؤ) هغه پېسې چې د ناوې د مخ کتـو پـه وخت هغې ته ورکولے شي
**خونے**:- (خو+نے) (پ (سو) اس مذ) هغـه سوغات يـا د پېرزوينې څيـز چې زنانـه ئې د پلار د کوره د ځان سره راوړي، هر کله چې هغـه يو څو شپو د پاره تللے وي
**خُوني**:- (خُو+ني) (فا ص مذ وا ج: خُنيان) قاتل، خُنکار، خُونړے
**خُونے**:- (خُو+نے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) قربان، زار
**خوۍ**:- (خ+و+ۍ) (پ اس مؤ) راشپېل، په درمند کښې د غلې د صفا کولـو د لرګي کالے
هر يو غم چې وينم اور رابندې لګي
ښلتانهٔ کـــرم د يـــارانـو لکه خوۍ (سکندرخان خټک)
**خوۍ لګول**:-اص (۱)په يو کار پسې ډېر کوښښ کول (۲)ډېر لالچ اؤ حرص کول
**خوي**:- (خُو+ي) (پ ص مؤ وا ج: خويُونه) عادت، خصلت
يـــــار آشنا چې کـبرجن شي مـه ئې وينه
چـــې په خوي خصلت پمن شي مه ئې وينه (علي خان)
خو بيــا هم ګوره بې موجبه راپسې دي واړه
زهٔ تـــرې ويربرمه د دوي دا سازشي خويونه (پريشان خټک)

**خوی**: - (خ+و+ی) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) یو قسم چینجی چې رنګ ئې تور یا شین وي او اکثر د بادام یا ولې په پاڼو پورې نښتې وي

**خویشت**: - (خ+وِي+ش+ت) (پ ص مذ (مؤ وا: خویشته ج: خویشتې) په اوبو لوند، خُوشت

**ـــ پیشت**: -اص، ډېر زیات خویشت

تر هغې چې دا راتلله سر تر پښو خویشته پیشته

ځومره ښکلې ښکارېدله سر تر پښو لمده لمده وه (غازي سیال)

**خویشتول**: - (خ+وِي+ش+تَ+و+ل) (پ مص مت) خوشتول، په اوبو کښې لوندول

**خویشتونه**: - (خ+وِي+ش+ت+و+نه) (پ حمص) خوشتونه، په اوبو کښې لوندونه

**خویشتوُونکې**: - (خ+وِي+ش+تَ+وُو+ن+کَې) (پ فاع مذ وا ج: خویشتووُنکي مؤ: خویشتووُنکې) خوشتوُونکې، په اوبو کښې لوندوونکې

**خویشتېدل**: - (خ+وِي+ش+تې+د+ل) (پ مص لا) خوتېدل، په اوبو کښې لوندېدل

**خویشتېدنه**: - خ+وِي+ش+تې+د+نه) (پ حمص) خوشتېدنه، په اوبو کښې لوندېدنه

**خویشتېدوُنکی**: - (خ+وِي+ش+تې+دُو+ن+کَی) (پ مف مذ وا ج: خویشتېدُونکي مؤ: خویشتېدوُنکې) خوتېدوُنکی، په اوبو کښې لوندېدوُنکی

**خویشتېدۀ**: - (خ+وِي+ش+تې+دۀ) (پ حمص) خوشتېدۀ په اوبو کښې لوندېدۀ

**خویندي**: - (خو+يَ+ن+دَي) (پ ص مذ) ښویدندے، ښوئېدوُنکے

**خېي**: - (خ، يِ +ئي) (پ (ب،خ، اس) میرات، بېخ بنیاد وتلے

**ـــ کول**: -اص، میراتول، بېخ بنیاد ویستل

**ـــ کېدل**: -اص، میراتېدل، بېخ بنیاد ویستلے کېدل

**خې**: - (خ+ي) (پ ص) (۱) بد او مکروه څیز (۲) ماشومان "دمه خوره" د پاره دا ټکے استعمالوي

**خې**: - (خي) (پ اس صو) د څاروو د شړلو اواز

**خئ**: - (خئ) (پ اس صو) اوښ ته د کښېنولو یا ښه‌اولو په وخت دا اواز کولے شي

**ـــ کول**: -اص، اوښ کښېنول

**ـــ کېدل**: -اص، د اوښ کښېناستل

**خیابان**: - (خَ+یا+با+ن) (فا اس مذ وا ج: خیابانُونه) (۱) د ګلونو کیارۍ (۲) د باغ په مېنځ کښې لار

**خیاست**: - (خ+یا+سَ+ت) (اَف:پ (قاموس) اس مذ وا ج: خیاستونه) خاصیت، عادت

**خیاط**: - (خَ+یا+ط) (ع اس مذ) درزي، جامې جوړوُونکے

غم د ترکو تر رحمن هسې چاپېر شو

لـــکه اُوسـکښي جـامه په چا خیاط

**خیال**: - (خ+یا+ ل) (پ اس مذ وا ج: خیالُونه) (۱) لوئي، فخر، ویاړ، ناز، نخره

خیال د هغې دے چې شوخ وشنګه وي

شـــونډې ئې شهد پـــه مخ لګرنګه وي (خوشحال)

(۲)سنګار، ځان جوړول (۳) پام، فکر

**ـــ کول**: -اص (۱)پام کول، فکر کول، (۲) نازنخره کول، ځان جوړول

**خیالجن**: - (خیال+ج+ن) (پ اس ص مذ (مؤ وا: خیالجنه ج: خیالجني) خیالمن ناز نخره کوونکے، فیشن کوونکے، خیالور، خیالي

**خیـــالمن**: - (خیـــال+م+ن) (پ اس ص مــذ (مـؤ وا خیالمنــه ج: خیـــالمني) و - خیالجن

**خیالو**: - (خ+یا+لو) (پ اس ص مؤ) خیالمنه زنانه، فیشني ښځه

**خیـــالور**: - (خ+یـــا+ل+و+ر) (پ اس ص مــذ (مــؤ وا خیـــالوره ج: خیـــالوري) و - خیالجن

**خیالي**: - (خ+یا+لي) (پ ص) و - خیالجن

**خیام**: - (خ+یا+م) (فا اس مذ) تمبو یا خېمه جوړوُونکے درزي

د خټکو نېزې هسې تلې په زغره

لکه ستن په خېمه درُومي د خیام (خوشحال)

**خیانت**: - (خ+یـا+نَ+ت) (ع اس مـذ وا ج: خیانتُونـه) دوکـه، بـد دیـانتي، بې ایماني، په امانت کښې غلا، متل: مزکه هم امانت نۀ خیانت کوي

**ـــ کول**: -اص، دوکه کول، بد دیانتي کول، بې ایماني کول، په امانت کښې غلا کول

**خېبی**: - (خې+ب+ی) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) د یخو اُوبو کُوهے

**خېټکے**: - (خې+ټ+کَے) (اَف:پ (قاموس) اس مذ مؤ: خېټکۍ) وړه خېټه

**خېټلکه**: - (خې+ټ+لَ+که) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ وا ج: خېټلکي) د حاشیے کرښه، خېټه

**خېټه**: - (خې+ټه) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ وا ج: خېټي) و - خېټلکه

**خېټو**: - (خې+ټُو) (پ اس ص مذ) خېټور، ګېډور، ستر خېټې، ډېرخوراکې

**خېټور**: - (خې+ټ+و+ر) (پ اس ص مذ (مؤ وا: خېټوره ج: خېټوري) و - خېټو

**خېټورتوب**: - (خېټور+تو+ب) (پ اس مذ) ګېډور توب، ډېر خوراکې

**خېټه**: - (خې+ټه) (پ اس مؤ وا ج: خېټې) ګېډه

**ـــ ایستل**: -اص، په زور زور چغې وهل

**ـــ ښهېدل**: -اص، خېټه نرمېدل، ه دستو کېدل

**ـــ پړسېدل**: -اص (۱)خېټـه ډډېدل، ګېډه لوےدل (۲) اُمید پیدا کېدل، حم کېدل

**ـــ تړل**: -اص، لوږه تېرول، صبر کول

**تڼاکه کېدل**: -اص، د ډېر خوراک له کبله خېټه سختېدل

**ـــ ټپول**: -اص، د لوږې اظهار کول، خوراک غوښتل

**ـــ ډډېدل**: -اص، و - خېټه پړسېدل

**ـــ ډکول**: -اص (۱) ډېر خوراک کول (۲) بډې رشوت خوړل

**ـــ ټټېدل**: -اص (۱)و - خېټه ایستل (۲) حرص زیاتېدل

**ـــ کول**: -اص، (۱)خېټه غټېدل (۲) دولتمند کېدل

**ـــ کېدل**: -اص، اُمید پیدا کیدل، حمل کېدل

**ـــ نرمېدل**: -اص، و - خېټه ښهېدل

**په بژه خېټه غوښتل**: -اص، په بې شرمۍ څۀ څیز غوښتل

**په خېټه سُږه مږه کېدل**: -مح، ډېر زیات خوراک کول

**په خېټه منډل**: -اص، حرج اؤ لالچ کول

**د مستې خېټې کار کول**: -مح، خامخا مستي کول

**خېجی /خېځی**: - (خې+ج+ئي) (پ (ظفر) اس مؤ) زېمناکه زمکه

**خېڅـۀ**: - (خې+ث+سـه) (اَف:پ (قـاموس) اس مـؤ وا ج: هېڅې) توتـه کـرکې، خرڅکه

**خېـد**: - (خې +د) (پ فـا خویـد اس مـذ) شـنه ګیـا، شـنې اُوربشې یـا غـنم چې وربے ئې نۀ وي ویستلے، خوید

کلـــه خیــــد کلـــه پخــــه ګله روده شي

څۀ امید به تۀ په شیب وپ شباب کړې (خواجه محمد بنګش)

**خیدک**: - (خې+دَ+ک) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) وران یا خراب شوي پۍ

**خَبر**: - (خَې+ر) (پ اس مذ وا ج: خبرېونه) (۱)سوال غوښتنه ګدا

ټپه: ملنګه دوه سوده دې اُکړل

یو دې خبر ټول کړو بل د اوکړل دیدنونه

(۲)ښېګړه، نېکي، ښهٔ والے

**ـــ بودول**:-اص (۱)خېر تر لاسه کول، د چا د کوره ګدا مونـدل (۲)ښېګړه حاصلول

**ـــ ټولول**:-اص، ګدا کول، خېر ګرځول، خېر غوښتل

**ـــ راوړل**:-اص ، ګدامونډل

ما د ستر ګو په کچکول کښې بې له غمه

بل څـهٔ خېر راوړے نـهٔ دے د زړهٔ کور ته (راج ولي خټک)

**ـــ ګرځول**:-اص ، و - خېر ټولول

**ـــ موندل**:-اص، (۱)ګدا موندل (۲) ښېګړه حاصلول

**ـــ ورکول**:-اص ، ګدا ورکول، بخشيش ورکول

**بې خېره**:-اص ، ظالم ، هغه څوک چې په بل ئې زړهٔ نهٔ سوځي سپېرهٔ

**په خېر راغلې**:-اص ، ستړې مشې

**د خېر جولۍ غوړول**:-اص ، خېر غوښتل، ګدا غوښتل، د خېر جولۍ وېړول

**د خېر جولۍ وېړول**:-اص ، و - د خېر جولۍ غوړول

**د خېر نه جولۍ ډکول**:-اص ، زياته ګدا او بخشيش موندل

**خِېر**:- (خې+ر) (پ ص) (۱)شرمنده (غصّه، سوخت (۳) تيار

بيا مې کينه ستر ګه لاندې باندې رېږي

مـګر بيا مې زړهٔ يارۍ وته خېر دے (خوشحال)

**ـــ کول**:-اص (۱) څوک غصّه کول، خېرول (۲) شرمنده کول

**ـــ کېدل**:-اص (۱) غصّه کېدل (۲) شرمنده کېدل

**خېرآباد**:- (خَې+ر+آ+با+د ) (پ اس معرفه مذ ) د لنډي او اباسين په غاړه اټک سره نزدې د خټکو يو کلے په پخوانۍ زمانه کښې مشهور ګودر وو

کـــه ګـــــذر پـــه خېرآبـاد اوکړې نسيم

يا دې ګشت اوشي د سرائے د سيند په نسيم (خوشحال)

**خېرات**:- (خَې+را+ت) (پ اس مذ وا ج: خېراتُونه) (۱) د خدا ے په نامه څـهٔ ورکول، صدقه،

ټپه: ستا د ديدن په طمع طمع

لکه فقير چې د خېرات په طمع وينه!

(۲)د خدا ے په نامه عامه ډوډۍ

**ـــ کول**:-اص (۱)د خدا ے په نامه څهٔ څيز ورکول، صدقه کول (۲)د خدا ے په نامه عامه ډوډۍ ورکول

**ـــ کېدل**:-اص ، د خدا ے په نامه څهٔ څيز ورکولے کېدل، صدقه کېدل

**ـــ ورکول**:-اص ، چاته د خدا ے په نوم څهٔ ورکول، صدقه ورکول

**خېراتي**:- (خَې+را+تي) (پ اس ص مذ ) خدا ے جاتي،د خدا ے په نوم ليـه بې پيسې بې ټکې،مفت

**ـــ ورکول**:-اص ، مفت ورکول، د خدا ے په نوم ورکول، خدا ے جاتي ورکول

**خېربرکت**:- (خَې+ر+بَ+رَ+ک+ت) (پ اص) د زنـانوؤ پـه ژبـه، برکت، ښـېګړه، ګرګي

**خېرجتـــوب**:- (خې+ر+ج+تـــو+ب) (اَف:پ (قـــاموس) اس مـــذ ) خېرجتيـــا ، شرمندګي

**خېرجتيا**:- (خې+ر+ج+ت+يا ) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ ) و-خېرجتوب

**خېرجه**:- (خې+ر+جه ) (اَف:پ (قاموس) ص ) خېرځه، شرمنده، نادم

**ـــ کول**:-اص ، شرمنده کول، نادم کول، شرمول

**ـــ کېدل**:-اص ، شرمنده کېدل، نادم کېدل، شرمېدل

**خېرځه**:- (خَې+ر+د+زه ) (اَف:پ (قاموس) ص ) و-خېرجه

**خَېر خبر**:- (خې+ر+خَ+بَ+ر ) (پ اص ) د خېريت او د حَال احُوال خبر ، د ښې بدې تپوس

**خَېرخوا**:- (خې+ر+خا+ه ) (فا اس ص مذ ) د بل خېر غوښتُونکے

**خَېرخواهي**:- (خې+ر+خا+هي ) (فا اس مؤ ) د بل خېر يا ښېګړه غوښتنه

**خېر خېرات**:- (خَې+ر+خَې+را+ت ) (پ اس مذ ) خېرات، صدقه، د الله په نامه څهٔ ورکول

**خېرسلا**:- (خَې+ر+س+َل+لا) (پ ص) خېر خېريت

**خېر غلامان**:- (خَې+ر+غ+لا+ما+ن ) (اَف:پ (قاموس) اس مذ ) يو قسم سُورنجن انګور چې تور والي ته نزدې وي او تازه مېوه ئې نهٔ شي کولې خو منقي ئې ډېره خوړه وي

**خيرن**:- (خَي+ر+ن) (پ ص مذ (مؤ وا : خيرنه ج: خيرني) کيچن، ګنده، ميلا، ناولے

زهٔ مــــزدور بچے نغښتے پــه چيرړانګو کښې يم

خيرن خيچن يم نو به ستاسو خو کښې ولې کښېنم (پريشان خټک )

**خيرن پيرن**:- (خيرن+پي+ر+ن) (پ ص مذ (مؤ وا: خيرنه پيرنه ج: خيرنې پيرنې ) ډېر ګنده، زيات ميلا، خيرن خيچن

**خيچن**:- اص ، ډېر خيرن ډېر ګنده

**خيرنتـــوب**:- (خيرن+تـو+ب) (پ اس مـذ ) خيرنتيـا ، خيرنـوالے، ګنـده تـوب ميلاتوب، خيچن والے

**خيرنتيا**:- (خيرن+ت+يا ) (پ اس مؤ ) و - خيرنتوب

**خيرن والے**:- (خي+ر+ن+وا+لے ) (پ اس مذ ) و - خيرنتوب

**خيرنول**:- (خي+ر+ن+و+ل) (پ مص مت ) ، خيچنول، ګنده کول

**خيرنونګ**:- (خي+ر+ن+و+ن+ګ ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خيرنونه

**خيرنونه**:- (خي+ر+ن+و+نه ) (پ حمص ) خيرنونګ، خيچنونه، ګنده کونه

**خيرنووُنکـــے**:- (خـــي+ر+ن+وُو+ن+کَے) (پ فـا ع مـذ وا ج: خيرنـــووُنکي مـــؤ: خيرنووُنکې ) خيچنووُنکے، ګنده کووُنکے

**خيرنېدل**:- (خي+ر+نې+د+ل ) (پ مص لا) خيچنېدل، ګنده کېدل

**خيرنېدنګ**:- (خي+ر+نې+دَ+ن+ګ ) (اَف:پ (قاموس) حمص ) و - خيرنېدنه

**خيرنېدنــه**:- (خي+ر+نې+د+نـه ) (پ حمـص ) خيرنېـدنګ، خيچنېدنـه، ګنـده کېدنه، خيرنېدهٔ

**خيرنېـدُونکے**:- (خي+ر+نـې+دُو+ن+کَے) (پ مـف مـذ وا ج: خيرنېـدوُنکي مـؤ خيرنېدوُنکې ) خيچنېدوُنکے، ګنده کېدوُنکے

**خيرنېدهٔ**:- (خي+ر+نې+ده ) (پ حمص ) و - خيرنېدنه

**خيروکوکو**:- (خي+رو+کو+کو ) (اَف:پ (قاموس) اس مذ ) خيروګل، يو قسم بوټے چې په دوائي کښې استعمالېږي

**خيـرول**:- (خي+رَ+و+ل) (پ مص مت ) (۱)غصّه کول، سُوختول (۲) تيارول، اماده کول (۳) شرمنده کول

**خيرونـه**:- (خي+ر+و+نـه ) (پ حمـص ) (۱)غصّـه کونـه، سـوختونه (۲) تيارونـه اماده کونه (۳) شرمنده کونه

**خيرووُنکـــے**:- (خـــي+رَوُو+ن+کَے) (پ اس فـا ع مـذ وا ج: خيرووُنکــي مـــؤ: خيرووُنکې ) (۱)غصّـه کـووُنکے، سُـوختووُنکے (۲) تيـارووُنکے، امـاده کووُنکے (۳) شرمنده کووُنکے

**خِېره**:- (خې+ره ) (پ اس مؤ وا ج: خيري ) (۱)مېـل، ګندګي (۲)زوه، د پرهر سخا اوبهٔ

**خېريت**:- (خَې+رِ+ي+ت ) (فا اس مذ وا ج: خېريتونه ) خېرسلا ، روغ جوړ

چې دې دم پـــه دم قيامت راتـه قائم وهٔ

ښهٔ چې ورک دې شهٔ صورت له خېريتَ (بېدل)

**خيربـدل**:- (خـي+رې+د+ل) (پ مـص لا ) (۱)غصّـه کېـدل، سُـوختېدل،قهرېدل (۲) تيارېدل، اماده کېدل (۳)شرمنده کېدل

**خیرېدنه**:- (خِي+رِي+د+نه) (پ حمص) (۱)غصّه کېدنه، سوختېدنه، قهرېدنه (۲) تیارېدنه، اماده کېدنه (۳) شرمنده کېدنه

**خیرېدُونکے**:- (خِي+رِي+دُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خیرېدُونکي مؤ: خیرېدُونکې) (۱)غصّه کېدُونکے، سُوختېدونکے، قهرېدُونکے (۲) تیارېدونکے اماده کېدُونکے (۳) شرمنده کېدُونکے

**خېز**:- (خِي+ز) (پ اس مذ) پورته کېدل، پورته تلل، غورېدل،

دا گلشن دې همېشه تـروتـازه وي

چې ئې خېز د ښو گلونو کال په کال دے (خوشحال)

**خېژول**:- (خِي+ژ+و+ل) (پ مص مت) پورته بوتلل، اُوچت چگول، جگول

**خېژولے**:- (خِي+ژ+وَ+لے) (پ مف مذ وا ج: خېژولي) پورته بوتللے، اوچت جګولے

**خېژونگ**:- (خِي+ژ+وَ+ن+گ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و - خېژونه

**خېژونه**:- (خِي+ژ+و+نه) (پ حمص)خېژونگ، پورته بوتلنه، اُوچت جگونه

**خېژووُنکے**:- (خِي+ژَ+وُو+ن+کے) (پ فا مذ وا ج: خېژووُنکي مؤ: خېژووُنکې) پورته بوتلُونکے، اُوچت جګووُنکے

**خیږ**:- (خِي+ږ+یا گ) (پ اس مذ وا ج: خیران)پترے، پېروے، خیرے، زنگ

**ـــ اچول**:-اص ، پترے نیول، خیږنیول، خیرے نیول، زنگ نیول

**ـــ نیول**:-اص ، و - خیږ اچول

**خیږن**:- (خِي+ږ+یا گ+ن) (اَف:پ (قاموس) ص مذ (مؤ وا: خیږنه ج: خیږني) خیرن، زنگ شوے، پترے نیولے

**خیږن توب**:- (خیږن+تو+ب) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) خیرن توب، زنگوالے

**خیږے**:- (خِي+ږَے یا گَے) (پ (ظفر) اس مذ) د بتیې گرمه ایره، اور غالے، ایره کول

**خَیسوس**:- (خَي+سُو+س) (اَف:پ (قاموس) اس مذ) خره چرچنه

**خِیش**:- (خِي+ش+ت) (پ ص مذ وا ج: خیشتهٔ (مؤ وا خیشته ج: خیشتي) خویشت، لُوند

**خِیشت**:- (خِي+ش+ت) (پ ص مذ وا ج: خیشتهٔ (مؤ وا خیشته ج: خیشتي) خویشت، لُوند

**خیشت پیشت**:- (خیشت+پي+ش+ت) (پ ص مذ وا ج: خیشتهٔ پیشتهٔ (مؤ وا: خیشته پیشته ج: خیشتي پیشتي) ډېر لوند، خوشت پوشت، جب جُوب

**خیشتوالے**:- (خِي+ش+ت+وا+لے) (پ اس مذ) لُوندوالے

**خیشتول**:- (خِي+ش+ت+و+ل) (پ مص مت)لمدول، خوشتول

**خیشتونگ**:- (خِي+ش+ت+وَ+ن+گ) (اَف:پ (قاموس) حمص) و —خیشتونه

**خیشتونه**:- (خِي+ش+ت+و+نه) (پ حمص)خیشتونگ، خوشتونه، لمدونه

**خیشتووُنکے**:- (خِي+ش+ت+وَ+وُو+ن+کے) (پ فاع مذ وا ج: خیشتووُنکي مؤ: خیشتووُنکې) خوشتووُنکے، لمدووُنکے، خیشتوُنې

**خیشتووُنے**:- (خِي+ش+ت+وُو+نے) (پ فاع مذ وا ج: خیشتووُني مؤ: خیشتونې) و - خیشتووُنکے

**خیشتېدل**:- (خِي+ش+تې+د+ل) (پ مص لا)لوندېدل، لمدیدل، خوشتېدل

**خیشـــتدېدنگ**:- (خِي+ش+تـــې+دَ+ن+گ) (اَف:پ (قـــاموس) حمـــص)و - خیشتېدنه

**خیشتېدنه**:- (خِي+ش+تې+د+نه) (پ حمص)خوشتېدنه، لوندېدنه، لمدېدنه

**خِیشتېدُونکے**:- (خِي+ش+تې+دُو+ن+کے) (پ مف مذ وا ج: خیستېدونکي مؤ: خیشتېدوُنکې) خویشتېدوُنکے، لمدېدوُنکے، لوندېدوُنکے

**خېښي**:- (خِي+ش یا خ) (پ فا خویش اِس مذ) خپل په رشته کېنې په رگ بسته کېنې په خپلوی کېنې شامل

**خېښـي**:- (خِي+شـي یـا خـي) (پ اس مـؤ) خپلـولي، رشـته داري کـول:-اص خپلولي کول، رشته کول

**خېگ**:- (خِي+گ) (اَف:پ (قاموس) اس مذ وا ج: خیگونه)(۱)غټ مشک، هغه شناز چهٔ په سیند کېنې د لامبو د پاره پکارېږي (۲)د جالې تخته

سیند خوني ثلور خیگُونه بیا هر یو سره جوړ نه دے (علیخان)

(۳)خوید ، خید

**خیگـړے**:- (خِي+گ+ړَے) (اَف:پ (قـاموس) اس تصغیر مذ وا ج: خیگـړي) وړوکے مشک

**خېـل**:- (خـي+ل) (پ اس مـذ وا ج: خېلونـه) (۱)خانـدان (۲) د لاحقـې پـه ډول هـم استعمالېږي لکه: خانخېل کاکاخېل

**خیلال**:- (خي+لا+ل) (اَف:پ (قاموس) اس مذ)پوست کړے اومېده کړے ،مغز

**خېلخانه**:- (خِي+ل+خا+نهٔ) (پ اس مؤ وا ج: خیلخانې) خاندان کورنۍ

**خېله**:- (خي+لَه) (پ ص) (۱)آواره، ایله (۲)کم عقل ، بیوقوف

**ـــ کېدل**:-اص (۱)آواره کېدل (۲) کم عقل کیدل، بېوقوف کېدل

**خېله خند**:- (خي+لَه+خَ+ن+د) (اَف:پ (قاموس) اس مذ)ټوقمار، مسخره، خېله خندے

**خېلـه خنـدے**:- (خېلـه+خَ+ن+دے) (اَف:پ (قـاموس) اس ص مـذ وا ج: خېلـه خندي مؤ: خېله خندې) و - خېله خند

**خېله خندې**:- (خېله+خَ+ن+دېي) (اَف:پ (قـاموس) اس مـؤ) ټوقمـاري، مسـخره توب، بې ځایه ټوقې پچموزې

**خېله گُس**:- (خي+لَه+کُ+س) (پ (خ) اس ص مذ)کم عقل، خېله ناپوهه

**خېلي/ خولی**:- (خي+لي) (پ (اورک) اس مؤ)ټوپۍ، خولۍ

**خیلـې**: (خي+لـې) (پ (ظفـر) اس) د آخـري چارشـنبې د چـوري یـو رسـم دا دوه قسمه وي، ارت خیلے، او تنگ خیلے

**ارت خیلے**:- اص، هغه چُوري چې د کور نه باهر خلقو له ورکولے شي

**تنگ خیلے**:- اص هغه چُوري چې صرف د کور خلق ئې خوړلے شي

**خِـیم**:- (خ،ي+م) (اَف:پ (قـاموس) ص مـذ (مـؤ وا : خیمـه ج: خیمـي) کرنـگ شـوے، جم شوے، کنگل شوے

**کېدل**:-اص کرنگ کېدل، کنگل کېدل

**خېنتې**:- (خي+ن+تِ+ی) (اَف:پ (قاموس) اس مؤ) (۱)ورکوتې کب (۲) پـه وَنـه داسې ختل چې خېته په سته پورې اولگولے شي او پاس خېژي

**خینگېدل**:- (خي+ن+گي+د+ل) (اَف:پ (قـاموس) مـص لا) ملامتـه کـېدل، نـادم کېدل، شرمنده کېدل

**خینگـول**:- (خـي+ن+گ+و+ل) (اَف:پ (قـاموس) مـص مـت) خنگـول، شـرمنده کول، نادم کول، ملامت کول

**خینگ**:- (خي+ن+گ) (اَف:پ (قاموس) ص) خنگ، شرمنده، نادم، ملامت

**خینجاړے**:- (خي+ن+جا+ړے) (اَف:پ (قاموس) ص) خراب

**خیه**:- (خ+یَه) (اَف:پ (قاموس) حرف) ښه، هو

◈◈◈

# د

**د** :ـ (دا+لْ) [پ، حرف، مذ، وا،ج: دالونه د پښتو ژبې دالف بې دپټې دیارلسم تورے۔

**دَ** :ـ (دَ) ، [پ] ،دِ ،د اضافت حرف۔

د رقیب دبـدوسترګو دې ځان ژغوري
هر عاشق چې بهره مند وي له حضوره (رحمٰن)

**دِ** :ـ (دِ) [پ] ،و- دَ

دِ رقیب له ویرې بل لوري ته سترګې
او د زړۀ مې ستا و مخ وته حملې وي (خوشحال)

**دا** (دا) [پ ،اشاره] ،(۱) دنزدې دپاره اشاره-(۲) دغه ، لکه۔

چې هیڅ ترس په زړۀ کښې نۀ لري رحمانه
دانـــاترس وبې پـــروانـــګاردچادے (رحمان)

**دا** :ـ (دا) ، [پ،مخفف] ، د دادامخفف لکه: ګل دا ، سپین دا۔

**داب** :ـ (دا+بْ) ، [پ اِس، مذ، وا ج :ـ دابُونه](۱) د ارټ تیر ، (۲) غټ لرګے۔

**داپ** :ـ (دا+پْ)، [اَف : پ (قاموس)، اِس،مذ] ، د جولاګانو تنسته ، دام۔

**ـــــ سمول** :ـ اِص، دتسنتې تارونه سمول۔

**دا په دا** :ـ اِص،په دې سبب، په دې وجه۔

**دات** :ـ (دا+ت)[پ ،ه : دهات ،اِس ،مذ ،وا ،ج : داتُونه]د کانونونه راوتے هغـه جـوهر چـې پـه تـاؤ وېلـې کېـږي-لکـه سـرۀ زر، سـپین زر ،تانبه،اوسپنه اوجست وغیره۔

**داتا** :دا+تا) ، [ه ،اِس ، ،صف، مذ، وا] (۱) بخښونکے ،سخي۔

چـې داهسـې سـرومال ښـیندي پـه ښـکلیو
شُـوم حمیـد کـړۀ محبـت سـخي داتـا

(۲) خدا ے تعالیٰ۔

**داتـاګنج بخـش** :ـ [اِس صف ، مـذ] ،شیخ ابوالحسن علي هجویري چې پـه کال**۳۹۵** هجرۍ کښې پیدا شوے وو او په لاهور کښـې ئې مزار دے.په کال**۴۶۵**هجرۍ کښې وفات شوے دے۔

**داتکے** :ـ (دا+تْ+کےَ)، [پ، اِس،مذ ،وا ، ج:داتکي ] ،یو بُوټے چې دجامو پـه رنګولو کښې پکار راځي۔

**داتُوره** :ـ (دا+تُو ْ+رَه)، [پ،ه : دهتورا، اِس، مؤ، وا]، دېتُوره، دالتُوره، دامتوره، یو زهرداربُوټے چې که څوک ئې تخم اوخوري نوبې هوشه شي۔

**داج** :ـ (دا+جْ) ،[پ ،اِس، مـذ، وا، ج : داجُونـه] ،دنـاوې جـوړې، جـامې اونورسامان چې د واده په وخت ئې مورپلارخپلې لورته ورکوي۔

**داجي** :ـ (دا+جيَ)، [پ ،ص ] ، دادک ،دپلار دپاره د مینې نوم۔

**داشیر** :ـ (دا+ ُسي+ر ْ)، [پ] داشان، دا راز، دغه شان، هم داسې ،دغه رنګ ،دا ډول ،داسې۔

**داخل** :ـ (دا+ خِ+لْ)، [ع ، ص ، مذ ، مؤ ، وا : داخله، ج :داخلې] ، ننوتے،دننه لاړ، په شمارکښې راغلے۔

زۀ د یـار و مخ تــه ګورم یــار و ماته
چې داخل په تماشا شوم تماشا شوم (رحمٰن)

**داخـل خـارج**:- (داخل+خـا+رِ+جْ)، [پ،ص] ، پـه مدرسـه یـا محکمـه مـال کښـې داندراج رجسټر۔

**داخل دفتر** :ـ (داخل+دَ+ فْ+تَ+ر) ، [پ ، ص] ، نامنظور، پـه التواکښـې، هغـه درخواست یا مقدمه چې کاروائي پرې ملتوي وي-

**داخلول** :ـ(دا+خِ+لَ+و+ل ) ،[پ ، مص مت, ننه کول، ننه باسل، ننه ویستل-

**داخلووُنکے** :ـ(دا+ خِ+لَ+ وُ+نْ +کےَ)[پ،اس فاع، مز ،وا ، ج : داخلووُنکي( مؤ، داخلونکې ] ، ننه کووُنکے ،ننه باسُونکے، ننه ویستُونکے۔

**داخلونه**:ـ(دا+خِ+لَ+و ، +نه) [پ حمص]ننه کوَنه ،ننه باسنه ،ننه ویستنه۔

**داخلـه** :ـ (دا+خِ+لـهَ)[ع ، پ ، اِس ، مـؤ، وا ،ج : داخلـې ]دننـه تلـل، اجازه، حوالـه کېدنه

**ـــــ اخسـتل** :ـ اِص ، اجازه اخسـتل، پـه مکتـب یـا امتحـان کښـې د شـاملېدلو منظوري اخسـتل۔

**ـــــ موندل** :ـ اِص ،په مکتب یا امتحان کښې دشاملېدلو منظوري خاصلول۔

**ـــــ ورکـول** :ـ اِص،اجازه ورکول،پـه مکتـب یـا امتحـان کښـې د شـاملېدلو منظوري ورکول

**داخلـي** :ـ(دا+ خِ+ لـيْ)[پ ،ص] انـدروني، دخـارجي ضـد ،انـدروني مسـئله یـا معامله۔

**داخلېدل** :ـ (دا+خِ+ې+د+ل ْ)، [پ ، مص لا، ننه کېدل۔

**داخلیـــدُونکے** :ـ (دا+خِ+لــې+دُو+ن ْ+کــےَ، [پ ، اِس ، فـــاع ، مـــذ ، وا ، ج :داخلېدونکي،مؤ:داخلېدُونکې] ،ننه کېدُونکے۔

**داخلېدنه** :ـ (دا+خِ+ ې+ د+نهَ)، [پ ، حمص] ، ننه کېدنه۔

**داخو** :ـ (دا+خو)، [پ] ،دغه خو، لکه :ـ داخو هغه سړے دے۔

**داخوا** :ـ(دا+خ+وا)[پ ،اِس اشاره] ،دېخوا ، دې پلو، دې طرف۔

**داد** :ـ (دا+دْ)، [فا ، اِس ، مذ ، وا ، ج : دادُونه] ،(۱) ورکړه ،بخښنه۔

د دلدار وصال دخدا ے په دا د موندۀ شي
دغــه کــار مې دهیچا په اختیار نۀ دے (رحمٰن)

(۲) واه وا ،آفرین ،صفت ،تعریف۔

**ـــــ اخستل** :ـ اِص ،تعریف مُوندل، په ښۀ شعریا ښۀ خبره دچا تعریف حاصلول.

**ـــــ غوښتل** :ـ اِص ،تعریف غوښتل، دواه واطمع ساتل -

نۀ زۀ داد د چا نه غواړم
نۀ امداد د چا نه غواړم (پریشان خټک)

**ـــــ موندل** :ـ اِص ،تعریف حاصلول، انصاف حاصلېدل۔

**--- ورکول** :- تعریف کول، په ښهٔ شعر یا چا ښهٔ کار آفرین وئیل۔

**دادا** :- (دا+دا+) ، [پ ،اس ، مـذ ، وا ، ج :دا داگـان] ،دا ټکـے پـه ځینـې قبیلـو کښې د پلار د پاره او په ځینې کښې د مشر د پاره وئیلے کېږي. متـل : کله د دادا وار ،کله د ادې وار۔

**دا دا توب** :- (دادا+تو+ب ٗ)، [پ، ص] ،پلار توب ،مشر توب۔

**دادرا**:- (دا+د ٗ+را)، [ه، اس ، مؤ ] ، یو راگ ،د سندرو یو وزن-

**دادري**:- (دا+د ٗ+ري)، [پ، اس، مـؤ، وا] ، ژبی ،دماشـومانویوه بیمـاري چـې دستوُنه پرې اولگي-

**--- کېدل** :- اص ،ژبی کېدل، په ماشُومانو د ژبی بیماري لگېدل، ماشوم په دستُونو کېدل۔

**دادک** :- (دا + د + کْ) [پ ، ص ] ، و- داجي۔

**دادگیرنه** :- (دا+د+گي+ر+نه)، [پ ، اس ، مؤ ] ،انصاف۔

**--- کول** :- اص ،انصاف کول۔

**--- کېدل** :- اص ،د چا سره انصاف کېدل۔

**دادُو** :- (دا+دُوْ)[سن ، ا س معرفه ، مذ ]په سنده کښې د یوې ضلعې نُوم۔

**دا دُو کار** :- (دا+ دُو+کا+رْ) ، [اَف :پ (قاموس)، اس ، مـذ] ،یو قسم زېړرنگې بُوټي۔

**داده** :- (دا+دَه)، [پ ، ص] ،اقراري ،تسلیموُونکے۔

بې وفـا معشوقې کلـه داده کېږي
دشاخېل پوښتنه اوکړه د خاکروب (احمددین طالب)

**--- کول** :- اص ،اقراري کول۔

**--- کېدل** :- اص ،اقراري کېدل ،منل۔

**دادي** :- (دا+دي) [اس ] ،فریادي، انصاف غوښتُونکے۔

هـر دادي تـرې فریـادي ځـې سـترگې مـرې
پـه دربـار کښـې هـېڅ مـدار د غریـب نشـته

**دادي دا** :- (دا+دي ٗ+دا) ، [اَف :پ (قاموس ، اص ] ځینې خلق دا د تکیـه کـلام پ توگه وائي۔

**دا ډول** :- (دا+ډو+لْ)، [پ ،اص ] ، و- داڅېر ۔

**دار** :- (دا+ر ٗ)،[فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج : دارُونـه ] ، پانسـي، د پانسـی تختـه، سُولي۔

قېصرلـــکه منصور غوندې په دار شي
دغه دار دے و رحمان وتـــــه معراج

**--- ته خېژول** :- اص، په دار خېژول ، په دار کول ، پانسي کول۔

**--- لگول** :- اص، (۱) د پانسی تخته اودرول ۔(۲) نخښنه اُودرول۔

**--- لگېدل** :- اص ،(۱) پانسي تیارېدل۔

دَ هر عیسی دپاره دې دنیا کښې دار لگېدو
د باطل غېږه کښې به څومره قېصران زېږېدل (پریشان ختک)

(۲) نخښنه اُودرول۔

**--- په دار خېژول** :- اص ،و –دار ته خېژول۔

**--- په دار کول** :- اص ،و- په دار خېژول۔

**--- په دار کېدل** :- اص، پانسي کېدل۔

چـــې نااهلوتـــــه د اهـــل وینـــا وایـــم
زهٔ حمیـد بــه د منصـور پــه شـان پــه دار شـم

**عمر په دار کول** :- اص ،څوک ډېر په کړاو اختـه کول ، زیات تنگول ، څوک تر پوزو راوستل۔

**عمر په دار کېدل** :- اص، په کړاؤ اخته کېدل ، په تنگسیا کېدل ، تر پوزو راتلل۔

**دار** :- (دا+ر ٗ)، [پ (ب، خ)، اس ، مذ ، وا ، ج : دارونه ]، نخښه۔

**--- ویشتل** :- اص، نخښه ویشتل۔

**دار** :- (دا+ر ٗ)، [پ، لاحقه ] ، دا ټکے دلاحقې په ډول استعمالېږي ،لکه :واکدار، دیندار، پامته دار۔

**دارا** :- (دا+را) ، [فا ، اس معرفه ، مذ] (۱) داېران یو مشهور بادشاه۔

کـه هر څو ئې جنگ جدل په دنیا وکړهٔ
ځني یـو نـهٔ وړهٔ سکندر او دارا هېڅ (حمید)

(۲) دشاه جهان بادشاه مشرزوے ۔

کـه غلبېل کـړم دتمامې دنیا خاورې
بیا بــــه نــهٔ مُوم دارا اوشاه جهان (رحمان)

**داراز** :- اص ،و- داڅېر۔

**دارالخلافـه** :- (دا+رُ+ل+خِ+لا+فـَه)[ع اس ، مـؤ ]د تخت ځـا ے ،د یـو ملـک صـدر مقام ۔

**دارجیلنگ** :- (دا+رجي+ل+ن+گ ْ)، [اس معرفه] دبهارت په بنگال صوبه کښې یو ښارچې اب وهوا ئې ډېره ښهٔ ده ،او چائې ئې مشهورې دي۔

**دارچیني** :- (دا+ر+چي+ني)، [ه ،اس ، مؤ] ، د یـو بُـوټي پـوټکے چې بـوي ئـې ډېر ښهٔ وي او د گرمې مسالې په توگه استعمالولے شي، دال چیني ۔

دارچـــیني د پـرمـهرے سره لازم دي
د سپېړمـــو نسوار ئې یوسي رنځ له سره (خوشحال)

**دارگې** :- (دا+ر +گې)[اَف : پ (قاموس)اس ، مذ، وا] ، تنکې بُوټي۔

**دارمـدار** :- (دا+ر+مَ+دا+رْ)، [پ،اس ، مـذ] ، عـزت ، خـاطر ، مېلمسـتیا ، ښـهٔ سلوک

**--- کول** :- اص ،عزت کول ، خاطر کول ، مېلمستیا کول ، ښهٔ سلوک کول۔

**--- کېـدل** :- اص، عـزت کېـدل ، خاطر کېـدل ، مېلمسـتاکېدل ، ښـهٔ سـلوک کېدل-

**دارمنگي** :- (دا+ر+مَ+ن+گي)[پ،اس معرفه]دپېښور ضلع کښې د یو کلي نُوم۔

**دارنگ** :- اص، و- دا څېر-

**دُارو** :- (دا+رُو ٗ)، [پ، اس ، مذ ، وا ، ج : دارُوگان ] ،(۱) دوا، دوائي۔

هـر بیمار لـره دارُو په جهان شته دے
دارُو نـهٔ لـري بـیمار ددې دنـیا (رحمٰن)

(۲) بارُود (۳) شراب۔

**--- اخستل** :- اص، دوائي اخستل۔

**--- جوړول** :- اص،(۱) دوائي جوړول ۔ (۲) بارُود جوړول۔

**--- خوړل** :- اص، دوائي څښل یا خوړل۔

**--- کول** :- اص،(۱) علاج کول- دوائي خوړل-

پــه طـبـیب د عاشقانـو دارُونهٔ شي
درُومه بـل خـواته دارُو دخپل زحمت کړه (رحمٰن)

(۲) څهٔ څیز خوړل۔

**--- کېدل**:- اص،(۱) علاج کېدل۔(۲) دڅهٔ څیز ښهٔ اثر کول،د چا په کار راتلل۔
(۳) قسمت کېدل۔

**--- ورکول** :- اص، دوائي ورکول ۔

**دارُودُرمل** :- (دارُو+دُ+ر ٗ+م+ل ٗ)، [پ ، اس ، مذ] ،علاج کول ،دوا دارُو ۔

**--- کول** :- اص ،علاج کولُ ،دوا دارُو کول۔

**--- کېدل** :- اص ،علاج کېدل، دوا دارُو کېدل۔

**داروغه** :- (دا+رو+غهَ)، (فا، اس ، مذ ، وا، ج : داروغه گان]محافظ ،نگهبان، افسر، دپولیس انسپکټر، د جېل افسر۔

**دارُوکار** :- (دا+رُو ٗ+ک+ر ٗ)، [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ] ،یو قسم بُوټے چې

د زهرو اثر لري او په خوړلوئې بنيادم په دستو کېږي.

**داروګر** :ـ (دا+رُو+ګ+ر)، [پ، اس، مذ، وا، ج :داروګران، (مؤ، وا: داروګره، ج: داروګرې)] طبيب، علاج کوونکے، ډاکټر.

دبيمار ساه په شونډو باندې راغله
داروګـرئې لاعلاج ته په تدبير دے (خوشحال)

**داره** :ـ(دا+ره)[پ، اس، مؤ، وا، ج: دارې]داوبو يا وينې پرله پسې ليکه، دارۍ.

زړۀ په خار دببکسۍ ئې پارې پارې
آبـلې بـه ئې وهـې دوينو دارې (حميد)

**دارۍ** :ـ (دا+ر+ی)[اَف : پ (قاموس )اس، مؤ] ، و - داره.

**ـــ وهل** :ـ اص، دارې وهل.

**دارياَل**:ـ(دا+ر+يا+ل )،[پ، اس، مذ، وا] ،تمبل، دريه، دَف.

**داړا** :ـ،(دا+ړا)،[پ (سو) (اس، مذ، وا] ، داړينګ ،داړور.

**داړک** :ـ (دا+ړ+ک)[پ، اس، مذ، وا (مؤ، وا: داړکه، ج: داړکې)] ،داړور، غابنور، هغه ښوک چې غابنونه بې لوئې وي، داړو، داړا، داړينګ.

**داړل** :ـ (دا+ړ+ل)[پ، مص مت ]چيچل، په غابنونو ښيرل، د غابنور ښيزچک لګول.

عـقل هوش ئې وسړي وتـه پېداکه
داچيچل داړل دـپړانـګ دې يـادېږي (خوشحال)

**داړلے** :ـ (دا+ړ+لے) [پ، مف، مذ، وا، ج: داړلي، مؤ: داړلې]
په غابنونو چيچلے ،چک لګولے شوے.

**داړنه** :ـ (دا+ړ+نه)[پ، حمص ]چيچنه، چک لګونه.

**ـــ کول** :ـ اص، چک لګول، په غابنونو چيچل.

**داړنے** :ـ (دا+ړ+نے) [ پ، اس، ص، مذ، وار مؤ، وا: داړنۍ] ، هغه ښوک چې غابنونه ئې اوږده وي.

**داړُو** :ـ (دا+ړُو )[پ،اس فاع، مذ]، و - داړک.

**داړور**:ـ(دا+ړ+و+ر) [پ، اس فـاع، مـذ] ،(۱) و -داړک.(۲) ښيـرُونکے ځناور، درنده.

**داړُونکے** :ـ(دا+ړُو+ن+کے)[پ، اس فـاع، مـذ، وا -ج :داړُونکي،مؤ: داړُونکې]په غابنونو چيچُونکے ،چک لګوُونکے، داړُونے.

**داړونے** :ـ (دا+ړُو+نے)، [پ ،اس ،مذ ،وا]، و - داړُونکے.

**داړه**: (دا+ړه )، [پ ،اس ،مؤ، وا ،ج: داړې]، (۱) اوږد غابښ.

دغزالانو زړۀ سُورے شي دزمري په داړه
نۀ مو د چانه څۀ اخستي نۀ ئې نُوم اخلو (پرېشان خټک)

(۲) (ب ،خ) تمبه، ور، دروازه .(۳) (ب،خ) دره، لرګے.

**ـــ اچول** :ـ اص،(۱) غابښ ښخول . (۲) ورلرې کول، تمبه خلاصول .

**ـــ پورې کول** :ـ اص، ور پورې کول .

**داړه خېژول** :ـ اص، و - داړه اچول .

**ـــ کېدل** :ـ اص ،اوږد غابښ راوتل-

**ـــ لرې کول**:-اص،تمبه خلاصول .

**داړې تېرې کول** :ـ اص، څۀ کار ته ځان تيارول .داړلوته نيت کول .

تۀ داخپل کلا م مېده پـه داخپل شخوند کړه
تـاداړلو تـه تېـرې کـړې داړې ولـې (رحمٰن)

**داړې ښخول** :ـ اص،(۱) غـابښ ښـخول،ټينګه خُولـۀ اچـول. (۲) پـه څـۀ ښيـز قبضه کول.

**داړې ښئيل**:ـ اص ،چا پورې سپکه خندا کول ، دبې وسۍ اظهار کول .

**دعقل داړې کېدل** :ـ اص ،هوښياربدل ، لوئېدل.

**داړه** :ـ (دا+ړه)، [پ، اس، مؤ، وا، داړې] (۱)دغلو ټولے، (۲)شُوکه-

نن ئې بيا بـانۀ لک څک دي خدايه خبر کړې
چـې ئـې بـيا جوړې په کُوم لورې داړه کړه (ناظر)

**ـــ اچول** :ـ اص ،شُوکه کول ،د لُوټ دپاره حمله کول، داړۀ خېژول.

**داړۀ مار** :ـ (داړۀ+مـا+ر)، [پ، اس فـاع، مـذ ،وا، ج: داړه مـاران (مـؤ وا : داړه مـاره ج : داړه مـارې]، چپـاوي، داړۀ کـوُونکے، دغلـو د ټـولي يـوکس، داړه وال.

**داړه مارې**:ـ(داړه+ما+رې)[پ، اس، مؤ]، چپاؤ ، غلا ، ډاکه.

**ـــ کول** :ـ اص، چپاؤ کول ، غلا کول ، ډاکه اچول.

**داړه وال** :ـ (داړه+ وا+ل)[پ اس، فـا، مـذ ،وا، ج: داړه والان (مـؤ، وا :داړه واله، ج: داړه والې]، و - داړه مار.

**داړينګ** :ـ (دا+ړې+ن+ګ)، [پ (سو )،اس، مذ، وا ] ،و - داړا.

**داس** :ـ (دا+س)، [س ، اس، مذ )،(۱) خدمتګار نوکر. (۲) دهندوانو د نُوم اخري حصه لکه: رامداس .

**داستان** :ـ (دا+س+تا+ن)، [فا ،اس،مذ ،وا-ج: داستانُونه)] ،قيصه، قيصې ،د يوې واقعې بيان، اوږده قيصې.

راشه واوره دا داستان
نېک وبد پکښې عيان (خوشحال)

**ـــ بيانول** :ـ اص، داستان تېرول، قيصې بيانول، په ځان تېره واقعه بيانول.

**ـــ تېرول** :ـ،اص ،و - داستان بيانول.

**ـــ جوړول** :ـ اص(۱)قيصې جوړول ،داستان تيارول. (۲) قيصه ډېره زياته اُوږدول. (۳) ددروغو قيصوجوړول.

**داسې** :ـ (دا+سې)[پ ،حرف]دغه شان ، دارنګ.

چې په دښمن دې هم پېرزو نۀ شې زۀ داسې ورځې
لـکه مهے چـې له اوبـو اوځي پـه ځـان تېروم پرېشان خټک)

**داښت** :ـ(دا+خ+يا+ش+ت) [پ، اس، مذ، وا، ج: داښتُونه]. بچه، دکلال بټۍ ،آوۍ.

**داغ** :ـ (دا+غ) ،[پ، اس، مذ، وا، ج: داغونه(۱) نخښه، چاپ، نشان، خال، خاپ.

کـه پـه دا دور مې ګـورې هغه زۀ يم
چـې مې داغ پـه خاطر ايښے داورنګ دے (خوشحال)

(۲) تور تهمت. (۳) (ب، خ) بګار، تړکه، تبې. (۳) (آش) شوملې تودول او لاونړ ترې جوړول.

**ـــ ايښودل** :ـ اص(۱) داغ ايښول، داغ لګول، داغل .

عاشقۍ هومره داغونه دي پرې ايښي
چـې تـمـام ئـې لاله زار کړو زما دل (رحمٰن)

(۲) تورپورې کول، تهمت لګول.

**ـــ ايښول** :ـ اص، و -داغ ايښودل-

**ـــ پورې کول** :ـ اص، تور پورې کول، تهمت لګول .

**ـــ لګول** :ـ اص ،(۱) نخښه کول .(۲) تور پورې کول.

**ـــ ورکول** :ـ اص،(۱) څاروو ته په ګرمه اوسپنه په څرمن کرښه راکښل ،داغل (۲) تړکه ورکول، بګار ورکول(۳) ښوک زورول يا تنګول، د عشق په اور سوځول

**داغدار** :ـ (داغ +دا+ر) ،[پ،اس ص، مذ، وا، ج: داغداران (مؤ، وا: داغداره ، ج: داغدارې]، (۱) داغي ، داغلے شوے، سوے لوے.

دلاله غـوندې داغدار په جهان راغلم
هم داداغ بـه لـه جهانه د صنم وړم (خوشحال)

(۲) تهمتي.

**داغل** :- (دا+غ+لْ) [پ ، مص مت ] ، داغ لګول، سول، متل :- د خر په ځای کلال داغل.

**داغلے** :- (دا+غ+لےَ)،[پ ، مف ، مذ ، و، اج : داغلي مؤ : داغلې]، داغ ورکړے شوے، داغ پرې اېښودے شوے، سوے.

ددا غلي زړۀ له اه شم څۀ شان چپ
د چمن په ګلو نۀ وي بلبلان چپ (حمید)

**داغمه** :- (دا+غ+مهَ)[پ ، اس ، مؤ ،وا ، ج : داغمې]دغمه ،دداغ نخښه ، د وهلو خاپ، تغمه.

**داغنه** :- (دا+غ+نه) [پ ،حمص ](۱) داغونه، داغ ورکونه، داغ لګونه (۲) زورنه.

**داغول** :- (دا+غَ+و+لْ) [پ ، مص مت ] ،(۱) داغل، نخښه لګول (۲) زورول.

**داغُونکے** :- (دا+غُو+نْ+کےَ) [پ ، اس ، فاع ، مذ ،وا ، ج : داغونکي، مؤ: داغونکې] ،(۱) داغ لګووُنکے ،داغونکے .(۲) زوروُنکے.

**داغونه** :- (دا+غ +و+نه)، [پ ، حمص ] ، و - داغنه.

**داغووُنکے** :- (دا+غَ+وُو+نْ+کےَ ، [پ ،اس ، فاع ، مذ ، وا ،ج : داغوُونکي، مؤ : داغوُونکې] ، و -داغُونکے.

**داغي** :- (دا+غيْ) ،[پ اس ص ] ، و - داغدار.

**داغېدل** :- (دا+غې+د+لْ) ، [پ، مص لا]،(۱) داغ لګېدل .(۲) زورېدل .

**داغېدنه** :- (دا+غې+د+نهَ) ، [پ،حمص ] ،(۱) داغ لګېدنه، داغېدۀ. (۲) زورېدنه.

**داغېدُونکے** :- (دا+غې+ودُو+نْ+کےَ ، [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : داغېدوُنکي، مؤ : داغېدوُنکې] (۱) داغ لګېدوُنکے.(۲) زورېدونکے.

**داغېدۀ** :- (دا+غې+ده) ، [ پ ، حمص ] ، و - داغېدنه.

**داکتر** :- (دا+کْ+تَ+رْ) ، [پ ،اَنګ : ډاکټر، اس، مذ ،وا ، ج : داکتران (مؤ وا : داکتره، ج : داکترې)] ، ډاکټر، ډانګټر، طبیب ،معالج، دکتور.

**دال** :- (دا+لْ)، [پ ،اس ،مذ ، وا ،ج : دالونه ] ،(۱) یو قسم غله چې چنه، مسور، موټ، مهې ،لوبیا وغېره پکښې شامل وي.(۲) پېتي.

**دالان** :- (دا+لا+نْ)، [پ، اس، مذ ، وا ، ج: دالاُنونه ] ، ارته او لویه برنډه، ډیوډی،ډیوډۍ.

**دالتوره** :- (دا+لْ+تُو+رَه) ، [پ ، اس ، مؤ] ،و - داتُوره.

**دالته** :- (دا+لْ+ته) ، [پ] هلته، لرِ لرې.

**دالته** :- (دا+لْ+ته)، [پ]، هلته، تاسره نژدې.

**دال چپاتي** :- (دال+چَ+پا+تيِ)، [پ ،اس مرکب ،ج ] ، ډوډۍ او انګولے ،رزق، د غریبانے خوراک.

**دالچیني** :- (دال+چي+نيِ)[پ ،ه : دارچیني ،اس مؤ]و -دارچیني.

**دال خور** :- (دال+خو+رْ) ، [پ ،اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : دال خوارۀ ،(مؤ، وا :دال خوره، ج :دال خورې] (۱) دال خوړونکے .(۲) دسپکې وېنا په توګه دا ټکے استعمالېږي.

**دالي دیري** :-(دا+لي+ دي+ري)[پ ، (بنو) ، اس ] (انې بانې ،اخوا دېخوا.

**دام** :- (دا+مْ)، [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج :دامُونه] (۱)جال، لُومه، کوړکۍ.

چې ئې ونښتم په دام د مستو زلفو
تند خویُونه ئې زما کړه وار په وار سست (علي خان)

(۲) ددنیا جنجال . (۳) ټګي، فرېب.(۴) داپ.

**ـــ اېښودل** :- اص ،(۱) جال غوړول، دام اېښول، دام غوړول.

دین ئې دام وي ددنیا په لار کښې اېښے
پرې راالړوي وحشیان د مخلوقات (رحمٰن)

(۲) چلول جوړول، څوک په ټګۍ راګېرول.

**ـــ اېښول** :- اص و - دام اېښودل.

**ـــ غوړول** :- اص ،و - دام اېښودل.

**په دام کښې راتلل** :- اص،(۱) په جال کښې ګېرېدل.(۲) دچا په چل کښې کښېوتل.

**په دام کښې نښتل** :- اص ،(۱) په دام نښتل، په دام کښېوتل، ښکار په جال کښې ګېرېدل.

چې تمام جهان ئې نښتے دے په دام کښې
څوک به څۀ کاندي انکار د تورو زلفو (رحمٰن)

(۲) دچا په چل کښې راتلل ،په ټګۍ کښې ګېرېدل.

**په دام کښېوتل** :- اص ،و - په دام کښې نښتل .

د تدبیر په دام به څشکله کښېوزي
معشوقه چې مې په مثل د عنقا شوه (رحمٰن)

**په دام نښتل** :- اص ،و - په دام کښې نښتل.

څۀ عجب دے که همائے په دام نښلي
هر صیاد څخه چې دام دے داخلاص (رحمن)

**داماد** :-(دا+ما+دْ)، [فا، اس ، مذ ، و ] ، زوُم، دلُور خاوند.

چې ئې زړۀ شي هلته کښېني هلته پاځي
عشق د عقل و دهُنر کړه داماد دے (رحمٰن)

**دامال** :- (دا+ما+لْ)،[پ ،حرف] دا وخت ،دے ساعت.

**دامان** :- (دا+ما+نْ)،[پ ،اس ،مذ ، وا ، ج: دامانوُنه] مېره، بیابان، دشت.

سُور لندے، سپرلمه،سویه وبله ګرځي
دشېرانو سره ټول په دامان ګډوډ (عبدالعظیم)

**دامتوره** :- (دا+مْ+تُو+ره) ،[پ ،اس، مؤ] ، و - داتُوره.

**دامړے** :- (دا+م+ړے)، [پ ،اس ،مذ ،وا ، ج : دامړي]، دمړے، دپخوانۍ سرې پیسې څلورمه برخه.

**دامن** :- (دا+م+نْ) ، [فا، اس ، مذ ، وا] دبنیادم یا دغرۀ لمن.

**دامن ګیر** :- (دامن+ګي+رْ) ، [فا ، اس ص ، مذ]،(۱) لمن نیوونکے.(۲) په برخه، په نصیب ،په قسمت .

دامن ګیر دعالمګیر هسې ماتم شو
چې ئې هېڅ نۀ شو پکار زور وحشم (حمید)

**دانا** :- (دا+نا) ، [فا ،اس ، ص ، مذ ، وا ، ج : دانایان] ، هوښیار ، پوهه ، عقلمند ، پوهاله.

مه درومه رحمانه په خلاف ددانایانو
مینه ددنیا پسندلے نۀ ده هېڅ دانا

**دانتوجین** :-(دا+نْ+تو+جي+ن)،[اس،مذ]،د غاښونو صفا کولو سپین پوډر-

**داندل**:-(دا+نْ+د+لْ ،اس،مذ ،وا ،ج:داندلُونه] ،غوبل،غوبمنډ ،ازمېښت-

چې تۀ لاړې سپین جهان مې تک تور تم شو
لوئې دندل د ببلتانۀ رابانديې راغے (صادق الله اورکزے)

**داڼو**:-(دا+ڼُو)[اَف:پ (قاموس)،اس،مذ]،داوڼ،څادر، پړوُنے، پټکے، چکاله،دانۍ.

**دانه**:- (دا+نهَ)، [پ (مر)،اس،مؤ،]دوُره،اوړۀ.

**دانی**:- (دا+نيْ)، [اَف:پ(قاموس)،اس،مؤ]،و-داڼُو-

**دانست**:-(دا+ن+س+تْ)،[فا ،ص]،پوهه،فکر ،خیال،علم،واقفیت-

**دانش**:-(دا+ن+شْ)،[فا+اس،مذ]،عقل،پوهه،علم،پوهنه-

**دانشمند**:-(دانش+م+نْ+دْ)،[فا ،اس ،مذ ،وا ،ج:دانشمندان،(مؤ،وا:دانشمنده، ج: دانشمندې]،عقلمند ،هوښیار،پوهه سړے،عالم ،پوهندویه-

دانــشمند د ے خـپل دانش لرې ساتلے
د تــعــلیم او د هــنر اثــر پـــه ذ یـــب (خوشحال)

**دانشمندي**:-(دانش+م+نْ+دي ْ)، [فا،اس،مؤ] ،دپوهې کار،عقلمندي-

**دانشور**:-(دانش+و+رْ)، [فا+اس ص،مذ،وا،ج:دانشوران،(مؤ،وا:دانشوره، ج: دانشورې)] ،عقل او د پوهې خاوند ،عالم-

کله کله اُوړه خوره چې سور ئې ډېر د ے
پـــه سفر بـــه ئې همېش خوري دانشور (خوشحال)

**دانشوري**:-(دانش+و+ري)، [پ،اس،مؤ] ،عقلمندي،هوښیارتوب،پوهه-

**دانګ**:(دا+نْ+ګْ)، [پ،اس،مذ،وا،ج:دانګونه،دانګې] ،(۱)ټوپ(۲)ترپ-

**ـــ وهل**:-اص،دانګې وهل ،ټوپونه وهل،مستې کول-

**ـــ په دانګو کول**:-اص،په ټوپونو سر کول،په منډه اخستل-

**دانګې وهل**:-اص،و-دانګ وهل-

**دانګـــل**:- (دا+نْ+ګ+لْ)، [پ،مــص لا] ،(۱)تــرپ وهــل،(۲)تــرپ کول،منــډه کول،(۳)د سر نه تېرېدل-

نـهٔ مـې بـې پتـه ژونـد پکـار د ے نـهٔ بـې مینـې دنیـا
ما ستا په پت کښې هم له ځان او لـه جهان اودانګل
(پریشان خټک)

**د سر نه دانګل**:-اص،د سر قربانۍ ته تیارېدل،هر څهٔ ته تیارېدل،مرګ تـه غـاړه کښېښودل-

**دانګلے**:-(دا+نْ+ګ+لےَ)، [پ،مپ،مذ،وا،ج:دانګلي،مؤ:دانګلې] ،ټوپ وهلے، متل:- دانګلي نهٔ دانګلي-

**دانګنه**:-(دا+نْ+ګ+نهَ)، [پ،حمص] ،ټوپ وهنه،ترپ کونه،منډه کونه-

**دانګوړے**:-(دا+نْ+ګوُ+ړےَ)،[اَف، پ(قاموس)، اس، مذ ، ] وا ،ج : د انګوړي] ، بادرګ -

**دانګول**:-(دا+نْ+ګ+و +لْ)، [پ،مص مت] ،په ټوپونو کول،په منډه اخستل،د ځایه لرې کول-

**دانګولے** :- (دا+نْ+ګ+و+لےَ) ، [پ،مف،مذ،وا،ج:دانګولي،مؤ:دانګولې] ،په ټوپونو کړے،په منډه اخستے-

**دانګونکے**:- (نْ+ګوُ+نْ+کےَ)، [پ،فاع،مذ،وا،ج:دانګونکي ،مؤ: د انګونکې] ، ټوپ کونکے،زغلېدونکے،

**دانګونـه**:- (دا+نْ+ګ+و+نه)، [پ،حمص] ،پـه ټوپونـو کونه،پـه منـډه اخـستنه، زغلونه-

**دانګوُونکـــے**:-(دا+نْ+ګ+وُو+نْ+کـــےَ)، [پ،اس ا،ج: د انګـــوُونکي، مـــؤ: د انګوُونکې] ، زغلونکے،منډه ورکونکے-

**دانګـه**:- (دا+نْ+ګـهَ)، [پ،اس،مؤ،وا،ج:دانګې] ، ترپه،ومنـډه،ترړه،ټوپ- پـه دانګو کول (سو)اص،(۱)لمسول،(۲)په ټوپونو کول-

**دانګے**:- (دا+نْ+ګےَ)، [پ(کن)اس،مذ ،](۱)د نښو بټ،کوغالے،(۲)اَف،یو قسم بوټے چې د رنګسازانو پکار راځي-(۳)اَف،منډه-

**دانګې ترپـې**:-دا+نْ+ګې+تْ+ر+پې)، [پ،اس ص،مؤ] ،منـډې ترپې،ټوپونـه غورځنګونه-

**دانګې دانګې**:- (دا+نْ+ګې+دا+نْ+ګې)، [پ،ص] ټوټې ټوټې کول،شلېدل،پاره پاره کېدل-

**دانګېدل**:-(دا+نْ+ګې+د+لْ)د ، [پ،مص لا] دانګل،ټوپ وهل،په منډه تلل-

**دانه**:- (دا+نه)، [پ،اس،مؤ،وا،ج:دانې] (۱)ننکۍ،ننې-(۲)د غلې تخم،زړے-

لکه پټ وي په دانه کښې
ســل ازغي ئې د شـجر (رحمان)

(۳)د جوارۍ دانه-(۴)دهانه،د اوبو د راوتو سر چینه-

**ـــ اچول**:- اص،(۱)تخم اچول-(۲)لالچ او طمع ورکول-

ماتې وزرې مې تر اوسه روغې شوې نهٔ دي
ظالــمه بیا ولې پـه لومـه کښې دانې اچوې (پریشان خټک)

**ـــ ا خستل**:- اص،مینه پېدا کېدل-دانه ـ ترل:اص،اوبو سرې ورخ ترل-

**ـــ ختل**:- اص،د چا په بدن ننکۍ ښکاره کېدل-

**ـــ ورکول**:- اص،غله ورکول-

که یوه دانه د اوړي په لاس ورکړې
هــم دغه بــه دې توښه شي د عقبا (رحمان)

**دانې ټولول**:- اص،(۱)غله راغونډول-(۲)خېر غوښتل-

**دانه دانه**:- (دا+نهَ+دا+نهَ) ، [پ،ص]خور وور ،دانه وانه،ترمې ترمې-

**ـــ کول**:- اص،دانه وانه کول،ترمې ترمې کول،خورول-

**ـــ کېدل**:- اص،دانه وانه کېدل،ترمې ترمې کېدل،خورېدل-

**دانه وانه**:- (دا+نهَ+وا+نهَ) ، [پ،ص]و_دانه دانه-

**ـــ کول**:-اص،و-دانه دانه کول-

**ـــ کېدل**:-اص،و-دانه دانه کېدل-

**دانیال**:- (دا+نْ+یا+لْ)[اس معرفـه] ،د خدا ے پاک د یـو نبـي نـوم(۱)د ترکـې د سمندر هغه وړه ټوټه چې بحیرۀ اسود د بحیرۀ روم سره یو ځا ے کوي-دا ځلوېښت میله اوږده او د میل نه تر څلورو میلو پورې پلنه ده-دې ته دانیال دره وائي-

**داؤ**:- (دا+ؤ ، [ه+اس،مذ،وا،ج:داوُونه]چل،ګتکه،موقعه،وار،څو-

**ـــ اخستل** :-اص، خپل وار اخستل-

**ـــ ایښودل**:- اص،شرط کښېښودل،شرط لګول-

**ـــ بائلل**:- اص،شرط بائلل-

**ـــ چلېدل**:- اص،چلول کول،دوکه کول،د چل نه کار اخستل،په چلولو کښې کامیابېدل-

**ـــ راتلل**:- اص،وار راتلل،وار موندل،په جوارۍ کښې د خپلې خوښې دانې یا پتې په لاس راتلل-

**ـــ کول**:- اص،قربانول،لُوټل،بائلل-

**ـــ ګټل**:- اص،شرط ګټل-

**ـــ لګول**:- اص،شرط کښېښودل،شرط لګول-

**داؤتے** :- (دا+وُو+تےَ)، [پ،فا:داؤدي،اس،مـذ،وا،ج:داؤتي] ،یو زېـړ بخـن یـا سپک اُودي رنګه ګل-

**داؤد**:- (دا+وُو+دْ) ، [عـب،اس معرفه،مـذ] ،(۱)د خـدا ے پـاک خـوښ-(۲)یـو مشهور پېغمبر چې زبور پرې نازل شو ے وو-

هر اشنا د حق ثنا کا
پـــه نغمه لکه داؤد (رحمان)

**داؤز ے**:- (دا+وْو+زَے) ، [پ،اس،مذ،وا،ج:داؤزي-] -(۱)د پښتنو یوه ټپه-

زهٔ عاشق یم سروکار مې د ے له عشقه
نـــهٔ خلیل نـــهٔ داؤز ے یم نهٔ مومند (رحمان)

(۲)د وریږو یو قسم-(۳)د داؤزي قبیلې یو غړ ے-

**داوڼ**:- (دا+و+نْ) ، [پ،اس،مذ] ،و-داڼُو-

**ـــ وهل**:- اص،په څادر کښې ځان پټول،څادر د مخ نه راچاپېرول- اوهٔ داوڼ په سر کول:-اص،اُوهٔ څادر د ځان نه راتاوول،ډېر په پرده کښې کښېناستل-

**داوه**:- (ا+وَه) ، [پ،ع:دعوه،اس،مؤ،وا،ج:داوې]دعوه،نالش،درخواست،غوښتنه-

**ـــ پر ښول**:- اص،داوې نه لاس په سر کېدل-

**ـــ داخلول**:- اص،و-داوه کول-

**ـــ دائرول**:- اص،داوه کول،داوه داخلول-

ــــ **کول**:- اص،دعوه کول،نالش کول،درخواست کول،داوه کول-

ــــ **کېدل**:- اص،دعوه کېدل،نالش کېدل،درخواست کېدل-

**داوې نه لاس په سر کېدل**:- اص،و-داوه پرېښول-

**داه**:- (دا+هْ) ، [ع،ص]،خدمتګار،مريئے،وينځه-

چې ئې کار د مېړۀ نۀوي

هغه نۀ دے مېړۀ داه دے (خوشحال)

**دائــره**:- (دا+ئــې+رَه) ،[ع،اس،مؤ،وا،ج:دائرې]،چکر،چــار چــاپېره غونــډه کرښه،حلقه-

ــــ **پراخېدل**:- اص،تعلقات زياتېدل-

ــــ **تنګول**:- اص،ګېره سختول،د چا ګېر چاپېر ګېره تنګول-

**دائره_جوړول**:- اص،دائره راکښل،چکر جوړول،غونډه کرښه راکښل-

ــــ **راکښل**:- اص،و-دائره جوړول-

**دائــره کښ**:- (دائره+کَ+شْ+يــاخْ) ،[پ،اس،مــذ]،پرکار،پُلکار،د دائــرې کرښه،راکښونکې آله-

**دائم**:- (دا+ئِ+مْ) ،[ع،ص]،تل،مدام،همېشه-

اوس مې بيا موندۀ په کور کښې

چــې دائــم ئــې وم پــه مرستــه (خوشحال)

**دائمي**:- (دا+ئِ+مي) ،[ع،ص]،مدامي،عمري،همېشه،تل تر تله-

**دائي**:- (دا+ئِيْ) ،[ه،اس،مؤ،وا،ج:دائي ګانې]،(۱)وارۀ لوبــوُونکي نوکره-(۲)د ماشوم د زېږېدو په وخت مدد کونکې پوهه او تجربه کاره زنانه چې ددې کار تربيت ئې اخستے وي-متل:ددائي نه ګېډه نۀ شي پټېدے-

**دب**:- (دَ+بْ)،[پ،اس ص،مذ]،کبر،لوئي،وياړ-

**دباشــي**:- (د+با+شــيْ) ،[پ(ب،خ)،اس،مذ،وا،ج:دباشــيون]د اوبنــانو کتــې جوړوونکے کاريګر-

**دباشــي تــوب**:- (دَ+با+شــي+تو+بْ) ،[پ،اس،مؤ]،د دباشــي كــار كــوونكے،د اوبنانو کتې جوړولو کار کوونکے-

**دبانديايستل**:- اص،بهر ويستل،ورچنې ايستل،بهر ته کول-

ــــ **تلل**:- اص،بهر ته تلل،ورچنې تلل-

ــــ **وتل**:- اص،بهر ته وتل،ورچنې وتل-

**دباندينے**:- (دَ+با+نْ+دي+نےَ) [پ،ص]بهرنے،ببروني،خارجي-

**دبــاؤ** :- (دَ+بــا+ؤْ)[پ ،ص] طاقت، اختيــار ، اثــر ،دزورلانــدې چې وزن ئــې پــه ورانديني حصه زيات وي-

ــــ **اچول**:- اص، زورغورځول ، سختي کول ،اثر غورځول ،-رعب قائمول-

ــــ **کول**:- اص ،زور ورکول ،زورل لاندې کــول ،قبضــه کــول ،تنګــول ،پــه زور نــه ايستل-

ــــ **کېدل**:- اص ،زور ورکېدل ،زورېدل لاند کېدل، تنګېدل، په زور نه کېدل-

ــــ **لاندې راتلل** :- اص، زورمنل ، طاقت ته غاړه کښېښودل-

**دباؤمنل** :- اص ،زورمنل، رعب منل ،تابعداري کول-

**په دباؤ کښې کېدل** :- اص ،په زور کښې کېدل، مغرورېدل-

**دبــاوول** :- (دَ+بــا+وَ+و+لْ) ، [پ ، مــص مــت ] زور ورکــول، لانــدې تېتــول، زورل،درعب لاندې راوستل-

**دباووُنکے** :- (دَ+با+وَ+وُ+ن+کےَ) ،[پ ، اس ، فــاع ، مذ ، وا ، ج :) دباووونکي، (مؤ، دباووُنکې] ، زور ورکوُونکے ،لاندې ټيټوونکے ،زوروُنکے ،د رعب لاندې راوستوُنکے ،دباووُنے-

**دبــاوُونے** :- (دَ+بــا+وَ+ وُ+نــےَ ، [پ ،اس ،فــاع، مــذ ،وا ، ج : دبــاووُني، (مــؤ : دباووُنې) د- دباووُنکے-

**دباوېــدل**:- (دَ+بــا+وې+د+لْ)[پ ،مــص لا]زور لانــدې راتلــل ،يربــدل ،لانــدې ټيټېدل-

**دباوېدنــه** :- (دَ+با+وې+د+نــهَ)[پ، حمــص] زور لانــدې راتلنــه ، يربدنــه، لانــدې ټيټېدنه ،دباوېدۀ-

**دباوېــدُونکے** :- (دَ+بــا+وې+دُو+ن+کےَ)[پ ، مــف ، مــذ ، وا ، ج : دباوېــدونکي، مؤ: دباوېدوُنکې] زور لاندې راتلوُنکے ،يربدوُنکے لاندې ټيټېدُونکے-

**دباوېدۀ** :- (دَ+با+وې+ده) ،[پ، حص ] ، و - دباوېدنه

**دبچــه** :- (دَ+ب+چــهَ)[پ، اس ،مــؤ ،وا ، ج : د بچې] ،يــوه آلــه چــې دمــړز آواز اُوباسي -

چې آواز مې ستا په غوږ شو په جال ګېر شوم

د دبــچــې آواز مــړز کــړو پــه جــال ګــېر (صادق الله)

**دبــدب** :- (دَ+بْ+دَ+بْ)[پ ، ع دبدبــه، اس ص ،مــذ ]رعــب ،دبدبــه، شــان، شوکت، ټيس ټپاس -

**دبدبه** :- (دَ+بْ+دَ+بهَ)[ع ، اس ص ، مؤ ]و - دبدب-

ــــ **ختل** :- اص، ټينګ خورېدل، مشهورتيا کېدل -

**دبُوب** :- (دَ+بْ+دُو+بْ) ،[پ ،اس ، مذ] زورنه، دبکې دړکې -

ــــ **کول** :- اص ،زورل، دبکې دړکې کول -

**دبرنــګ** :- (دَ+بْ+رَ+نْ+ګْ)(اَف : پ (قــاموس) اس ،مــذ ،]دلرګــي پــښن چــې ماتېږي نه

**دبړ** :- (د+ب+ړْ)[اَف : پ (قاموس ) ، ص ، مذ ، (مؤ ،وا : دبړه، ج : دبړې] غټ، څورب -

**دبکه** :- (دَ+بْ+کهَ)[پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : دبکې] ، دپکه ، دړکه ،رعب داب، دهمکي-

**دبکه کول** :- اص ،دپکه کول ،دړکه کول، رعب داب اچول-

**دبګــر** :- (دَ+بْ+ګَ+رْ)[پ ، اس ، مــذ ، وا ج :دبګران،(مــؤ ، وا : دبګــره،ج : دبګرې]دڅرمنې کُوپې او ډالوُنه جوړوُونکے-

**دبل** :- (د+ب+لْ)[ پ ، مص مت ]په مزکه پلنول ، دربل-

**دبل** :- (د+بَ+لْ)[پ ، حرف ]د بل چا ، پردے ،متــل : دبــل پــه کــور ســل مېلمانۀ ځۀ وي-

ــــ **په اسرا** :- اص ،دبل په امداد -

ــــ **په اُوږو** :- اص ،په بل چا بار -

ــــ ، **په طمع** :- اص ،دبل په اسره-

ــــ **په کار راتلل** :-، اص، دبل سره ښېګړه کول -

ــــ **په ګونه غل کول** :- اص، دبل په کار خپل نوُم کول-

ــــ **لاس ته کښېناستل** :-،اص، د بل چا خوړل ،د بل نه طمع کول -

**د بل چا** :-،(بَ+لْ+چا)[پ،حرف ]د- دبل-

**دبلــه** :- (دَ+بْ+لــهَ)[اَف :پ (قــاموس ، اس ، مــؤ )دلوهــارانو د اوزارکښــېولو دلرګي صندوق -

**دبلے** :- (دَ+بْ+لےَ)[پ ، اس ، مذ ، وا ، ج :دبلي )(۱) ډبرے-

دا دې خولــۀ کــه سرچشمه دۀ د حيات کــه ښــکلے مــيم دے

يــا د بلــے دے د يــاقوتو يــا طــوطي دے شــکر ښــاده

(علي خان)

(۲) دټېلو يادنسوارو ډبرے-

**دبلے** :- (د+ب+ےَ)[پ ،ا س ، مذ ، وا ،ج دبلي ]د لوُخې څونډے ،ګل يا ورمې-

**دبلے** :- (د+ب+لےَ)[پ ، مف ، مذ ، وا ،ج : دبلي ] ښخ کړے -

**دبنه** :- (د+ب+نه)[پ ،حمص] په مزکه کښې ښخونه -

**دبوب** :- (د+بو+بْ)پ (ب ،خ )اس ، مذ ] ډُوزې، لوئي ،ځان ښئينه-

**ــــ کول** :ـ(ب،خ ،اص) ډوزي ويشتل ،لوئي کول ،ځان ښئيل۔

**دبوبي** :ـ (د+بو+بيٍ)[پ (ب،خ، اس ص ،مذ ] ډوزمار، لافو، ځان ښيُونکے۔

**دبوک** :ـ (د+بُو+کْ) ،[پ،اس ص،مذ]بيکاره،بې خونده بنيادم، ډبا۔

**دبُونکے** :ـ (د+بُـو+نْ+کـےَ) ، [پ ، اس ، فـاع ، مـذ ، وا، ج : دبـُـونکي مـؤ : دبُونکې] په مزکه کنبې ښخووُنکے۔

**دبه** :ـ (د+بهَ) ، [پ ، اس ، مؤ ، وا، ج :دبې] دځرمنې نه جوړه دتېلوکُوپې۔

**اوبۀ په دبه وهل**:ـ اص ،ډېرخوار ژوندون تېرول ، دغريبۍ ورځې اړول۔

**دبې**:ـ (د+بې)[پ ، ص ]اکچه مېوه چې په پاڼو يا بُوسو کنبې پخه کړے شي-

**دبې للـه** :ـ (د+بَي+ل+لـهَ)[اَف : پ (قـاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج : دبې للـې ] دمزکې درې گوټنره ټوټه۔

**دبے** :ـ (د+بےَ)[پ ، اس ، مذ، وا، ج :دبې] دجامو وينځلو لرگے، تيپے۔

**دبېدر** :ـ (دَ+بې+د+رْ) ،[پ ، اس ، مذ ] مېرگن، يو ښکارې مارغۀ چې د باز نه هم زورور وي۔

**دبېرۍ بيوزے** :ـ (دَ+بې+ر+ی+ب+يو+ز+ےَ)[پ ، اس ، مذ ] دکشتۍ بادبان۔

**دپ** :ـ (دَ+پْ) ،[پ ، ص ، مـذ ](۱) بنـد ، ايسـار ، خونـدي۔(۲) ښـخ ۔(۳) پټ، دسترگونه پناه۔

**ــــ کنبېناستل** :ـ اص ،پټ کنبېناستل، دخلقونه پناه کنبېناستل۔

**ــــ کول** :ـ اص، بندول، ايسارول۔

**ــــ کېدل** :ـاص ،بندېدل، ايسارېدل۔

**باد دپ کېدل** :ـ اص ،هوا دپ کېدل ،بادبندېدل ۔

**غوږونه دپ کېدل** :ـ اص، غوږونه بندېدل، په غوږوُنو نۀآورېدل ۔

**هوادپ کېدل** :ـاص، و - باد دپ کېدل۔

**دپ** :ـ (دَ+پْ ،[،پ اص صو ] ، (۱) دځۀ څيـز دراپرېوتـو آواز چـې کړنگ نـۀ وهي۔(۲) څورب بنيـادم چې په سُوک اووهلے شي نو ددپ آواز ترې را اوځي۔(۳) ارمان (شن)۔

**ــــ ختل** :ـ اص، دڅورب بنيادم دوهلونه پس آواز راتلل ۔

**ــــ وتل** :اص ، (شن ) ارمان ،وتل ټېرېخېدل ۔

**دپاره** :ـ (دَ+پا+رَه) ، [پ ، حرف ] دځۀ د پاره۔

**دپاسه** :ـ (دَ+پا+سهَ) ،[پ ، حرف ]پرې دپاسه، باندې، سربېرې، علاوه۔

زۀ رحمٰــن پــه ســل حلقودزلفـو بنــديم
لادپاســه سُــور پېــزوان شــو بلــه تنــه

**دپ دُوپ** :ـ (دَ+پْ+دُو+پْ) ، [پ ، ص] (۱) پټ ،پناه ۔(۲) دوهلو آواز۔

**دپښـو پـه ليکـه** :ـ (دَ+پْ+شو+ياخو+پهَ+لي+کهَ)، [پ ،جملـه ] د پښـو پـا شـان ،دپښوپه دود۔ متل : دپښو په ليکه مه شه تل برے دے ۔

**د پښو خوا** :ـ (دَ+پْ+شو+ياخو+خْ+وا) ، [پ ،اص] دسوبل طرف۔

**دپکه** :ـ (دَ+پْ+کهَ)[پ ، اص ، مؤ ، وا ، ج : دپکې]دړکه ، رُعب داب۔

**دپنځلســمې شــپه** :ـ(د+پَ+نْ+دزْ+ل+سَ+مې+ش+پـهَ)[پ ، اس ] د پنځلسـمې شپه ، دشوقدر دمياشتې پنځلسمه شپه ۔

**دپنځلسي شپه** :ـ (د+پَ+نْ+دزْ+ل+سي+ش+پهَ)[پ ، اص] و - دپنځلسمې شپه -

**دپول**:ـ(د+پَ+و+لْ)[پ ، مص مت ] ښخول ،په مزکه کنبې دننه د باوول۔

**دپونه** :ـ (د+پَ+و+نهَ)پ ، حمص] ښخونه ، په مزکه کنبې ننه ايستنه۔

**دپووُنکے** :ـ (د+پَ+وُو+نْ+کےَ)[پ ، اص ، فـاع ، مـذ، وا، ج : دپـوُونکي، مـؤ: دپوونکې] ، ښخوونکے ،په مزکه کنبې ننويستُونکے ۔

**دپه هوا**:ـ(د+پهَ+ه+َوا)[پ ، اس ، ص ، مؤ] بنده هوا، ولاړباد،دُوپ ،خُپد

**دپېدل**:ـ (د+پې+د+لْ)[پ ،مص لا]ښخېدل ،په مزکه کنبې ننه ايستلے کېدل

**دپېدنـه** :ـ (د+پې+د+نـهَ)[پ ،حمص ] دپېـدۀ ، ښـخېدۀ ، پـه مزکـه کنبـې ننـه ايستلے کېدۀ ۔

**دپېــدُونکے** :ـ (د+پــې+دُو+ن+کےَ)[پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج : دپېــدُونکي ،مـؤ : دپېدُونکې) ] ښخېدوُنکے ،په مزکه کنبې ننه ايستلے کېدُونکے ۔

**دپېدۀ** :ـ (د+پې+دهَ) [پ ،حمص ] و - دپېدنه۔

**دتا** :ـ (دَ+تا) ، [پ ، حرف ] ستا ۔

داخــبــره زۀ وځــان تــه کرم اے ياره
دلــگير مــه شه که مې نُوم واخست دتا (رحمٰن)

**دتکارل** :ـ (د+ت+کا+رْ+لْ)[پ ، مص مت ] لمسول، پارول ،دځان نه لرې کول، غلول، رټل، کُرې کول، شړل۔

**دتکـارلے** :ـ (د+ت+کـا+ر+لےَ) ،[پ ، مف،مـذ ،وا ،ج: دتکـارلي، مـؤ: دتکـارلې] لمسولے، پارولے، غلولے ،دځان نه لرې کړے ،رټلے، کُرې کړے، شړلے ۔

**دتکارنه** :ـ (د+ت+کا+ر+نهَ)[پ ، حمص ] لمسونه، پارونه، غلونه، دځان نه لرې کونه، رټلے ،کُرے کړے شوے ۔

**دتکـاروُنکے** :ـ (د+ت+کـا+رُو+نْ+کےَ)[پ ، فـاع ، مـذ ، وا، ج : دتکـاروُنکي، مـؤ : دتکـاروُينکې] لمســووُنکے،پاروونکے، غلووُنکے،رټــوُنکے، شــړوُنکے ،کُرے کوُونکے ۔

**دتکاربـدل** :ـ (د+ت+کـا+رې+د+لْ)[پ ،مـص لا] لمسـېدل، پارېـدل، غلېـدل، کُرے کېدل، شړلے کېدل، رټلے کېدل ۔

**دتکارېدنـــه** :ـ (د+ت+ کا+رې+د+نـهَ)[پ ،حمـص] لمسـېدنه، پارېدنـه، غلېدنه،رټلے کېدنه، شړلے کېدنه،کُرے کېدنه، دتکارېدۀ۔

**دتکارېــدُونکے** :ـ(د+ ت+کــا+رې + دو+ نْ+ کـےَ) ،[پ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: دتکارېـدونکي،مؤ : دتکارېـددُنکې] لمسـېدُونکـے ، پارېـدُنکـے ، غلېدوُنکے، رټلے کېدوُنکے، کُرے کېدُونکے شړلے کېدُونکے ۔

**دتکارېدۀ** :ـ (د+ت+کا+رې+ده) ،[پ ،حمص ] و - دتکارېدنه ۔

**دتــه خېــل** :ـ (د+تــهَ+خې+لْ)[پ ا ،ص معرفــه ] پــه قطبــي وزيرســتـان ايجنسۍ کنبې يو کلے ۔

**دجال** :ـ (دَ+جْ+جا+لْ) ،[ع ،اس معرفه ، مذ، وا ، ج : دجالان ] (۱) کـانړے ،ديـوې سترگې خاوند ،هغه څوک چې دقيامت نه وړاندې بـه څرگندېږي اوخلق به په گمراهۍ کنبې اچوي ۔

سرنوشت د سړي خپل دے
يـــو وي بـــل دجــال شي (رحمٰن)

(۲) ضدي ۔(۳) دروغژن، دوکه باز ۔

**دجله** :ـ (د+ج+له)[ع ،اس معرفه ]د عراق يو مشهور سيند ۔

**دځان** :ـ (دَ+دزْ+ا+نْ)[پ ، حرف ] خپل ذاتي ۔

**دځـانول**:ـ(دَ+دزْ+ا+نَ+و+لْ)[پ ،مـص مـت] خپـلول ،پـه خپـل ملکيـت کنبـې راوستل

**دچا** :ـ (دَ+چا)[پ ، حرف ] د کُوم کس ۔

دا دنيـــا لکـــه لـــوليۍ ده خوشـــحاله
کــه ئــې گــورې گــاه د چاشــي گــاه دچــا

**دچه** :ـ (دَ+چه)[اَف : پ (قاموس )اس صوا]د بزې شړلو آواز ،اَچه ،کچې ۔

**ــــ کول** :ـ اص ،بزه شړل، بزه کچې کول، بزه اچه کول ۔

**دچه** :ـ (د+چه)اَف پ (قاموس )ص ]دبدبه ، شان شوکت ۔

**دچــه** :ـ (دَ+چـهَ) ،[اَف : پ (قـاموس) اس ، مـؤ ]دخربـوزې، هنـدوانې يـا کـدو وغېره ، جووه ۔

**دڅېلمې** :ـ (د+تسې+لْ+مې)پ ،حرف ] ټول،کُلهم ۔

**دخل** :ـ (دَ+خْ+لْ)[ع ، اس ] رسائي،قبضه، لاس ، اختيار، مجال ۔

په وصال ئې منت بار اوسه رحمانه
په صدف کښې دخل نۀ وي د ګوهر بيا

**دخل ورکول** :- اص،(۱) په مېنځ کښې ورګډېدل، بې اجازې او بې تپوسه لاس اچول ـ(۲) دخالے نه د چا قبضه ختمول ـ

**دد** :- (دَ+دْ)[فا، اس ،مذ ]داړونکے ځناور ـ

دد ودام ددې سريونه بهتر دے
اے خوشحاله ځه له ښاره په صحرا

**دَد** :- (دَ+دْ)[پ،ص]، خاموشه ،ګونګ، غلے، دخبرو دتوان نه پاتې.

**ــــ کېدل** :- اص ،خاموشه کېدل، دبيمارۍ په حالت کښې غلے کېدل ـ

**ددورے** :- (دَ+دُو+رے) ، [پ ، اص ، مذ ، وا ، ج : ددوري مؤ : ددورۍ] ،بوډا او کمزورے سړے-

**ددوي**:- (د+دُو+يْ) ، [پ ،ضمير ](۱) ددې خلقو، ددغو-(۲) دهغوي ـ

**ددۀ** :- (دَ+دۀ)[پ ، ضمير] ددغه کس ـ

**ددې** :- (دَ+دې)[پ ، ضمير] ددغې ښځې ،ددغې جينۍ ـ

**در** :- (دَ+رْ) ،[فا، اس ، مذ، وا ، ج :درُونه](۱) ور ،دروازه ـ

زۀ رحمان د محمد ﷺ د درخاکروب يم
که مې نۀ کا خدا ے له دې دره جدا (رحمٰن)

(۲) ضمير مخاطب، دمفعول په سابقه استعماليږي ـ لکه درځم ، درباندې

**ـــــ پرېښودل** :- اص ،ددرنه تلل ،د چاسره تعلق نۀ ساتل ـ

په ښائست زما ديار نۀ دې خبرڅوک
که خبرشي پرې به نۀ پرېدي دغه درڅوک (رحمٰن)

**ــــ په ديکه** :- اص ،در په در ـ

در په ديکه لکه يتيمه څوک دې ګټه نۀ کړي
پردوخندا درپورې اوکړه خپلو اوږلې (پريشان خټک)

**دبل ورته کښېناستل** :- اص ،دبل نه طمع کول ،دبل آسرې ته سترګې غړول.

**د درملنګ کېدل** :- اص ،دچاسره بې شانه مينه پيداکېدل ـ

**له دره بدرکول** :- اص ،دکوره شړل، له دره شړل ـ

هغه څوک دې چې وستاله دره درومي
که ئې تۀ له خپله دره بدرنۀ کړې (رحمٰن)

**له دره شړل** :- اص ، و - له دره بدر کول ـ

که له دره ئې شړې که ئې پرېږدې تۀ
ډېرمئين دے ستا په مخ عبدالرحمان (رحمٰن)

**دُر** :- (دُ+رْ) ،[ع ،اس ، مذ] (۱) ملغلره ـ

که مې هره وينا دُرشي يا ګوهر شي
ستا دغورونۀ ده لائقه زما وينا (رحمٰن)

(۲) دغوږونو يو کالے ـ

**ـــــ بدلول**:- ص ،ملغلره بدلول ،قيمتي څيز په بل کم قيمته څيز ورکول.

نادانانو هسې دين په دنيا بائلود
لکه وړوکے دُربدل په پارانان کا (رحمٰن)

**ـــــ پېيل** :- اص ،ملغلرې په تار کښې پېرل ـ

د خوشحال خبرې ګوره
لعل ودُر پېيي په تار

**درابن** :- (د+را+بَ+نْ)[پ، اس معرفه ]د ضلع ډېره اسماعيل خان په کُلاچې تحصيل کښې يو کلے ـ

**درابي** :- (د+را+بِيْ)[ه ، اس ، مذ، وا، ج : درابيان ] د کچرو پالونکے ،کچرې چلوونکے ـ

**درابي**:- (دْ+را+بي)[پ (ب خ) اس ، مؤ ]يو قسم اتڼ چې سرے ئې اچوي ـ

**ــــ اچول** :- (ب ،خ، اص، يو مخصوصه ګډا کول ، اتڼ اچول ـ

**دراز** :- (دْ+را+زْ) ، [فا ، ص] اُوږد ، لرې پورې خور ـ

درازعمر مې حاصل شو له راستۍ
لکه سروه مدام سبزوتازه پائم (رحمٰن)

**دراز** :- (د+را+زْ)[پ ، اَنګ ، ډرار، اس ، مذ، وا ، ج :- درازُونه] د مېز خانه ـ

**درازنده** :- (دْ+را+زِ+نْ+دَه)پ ، اس معرفه ] د ډېره اسماعيل خان په ضلع کښې يو کلے ـ

**درازه** :- (دْ+را+زه)[پ ، اس ،مؤ ] شور، زوږ، دزر دروُز ،زلزله ـ

**دراکه** :- (دْ+را+کهَ)[پ ، اس ، مؤ ، وا، ج : دراکې] بکيانه ـ

**دراته** :- (دَ+را+نْ+ته) ، [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج :دراتې] د چمن يا دکورنه ګېر چاپېره د پردې دپاره لګولې شوې بُوټې-

ددراتو په دېوالو کښې پټې شوې بنګلې
لکه لګيا وي يوې بلې ته ئې زور ورکوؤ (پريشان خټک)

**درانده** :- (دَ+را+نْ+دے)[ پ ، اس ، مذ ] دګډويومرض چې اينه ئې بيماره شي-

**ـــــ وهل** :- اص ، په ګډو د دراندے مرض لګېدل ـ

**درانبت** :- (دْ+را+نَ+شْ ياخْ+تْ)[پ ،ص ]دُروندوالے، لوئي والے، عزت ـ

پښتو درانښت او سرېتوب او قرباني زېږوي
مېلمه دوستي او تش خلوص ته هم سخاته وائې (پريشان خټک)

**دارنګ** :- (دْ+را+نَ+ګْ)[پ ، ص ]شان ، دبدبه، رعب ـ

**درانۀ** :- (دْ+را+نه)[پ ، ص ] د دُروند جمع، عزتمن، وزن دار ـ

**ـــــ کتل** :- اص ،چاته په عزت کتل ـ

**ـــــ وړل** :- اص ،د چا سختې تندې خبرې زغمل ـ

**دراني** :- (دُ+را+نيْ)[پ ، اس ، مذ، وا، ج:دُرانيان،مؤ:درانۍ] د پښتنو يوه مشهوره قبيله چې د احمد شاه بابا په شان مشر او لوئي بادشاه پکښې پيدا شوے وو.

نادرشاه پرې باندې راغے خو بيا راغلل دُرانيان هم
په دې مزکه ووُتېر شوې دسپد شهيد غازيان هم (پريشان خټک)

**دراوڼ** :- (دْ+را+وْ+ڼْ)[پ ، اس ، مذ، دا، ج : دراوڼونه] داوڼ، دزنانۀ څادر ـ

**دراوے** :- (دْ+را+ وَے)[پ، اس ،مذ ] نخښنه ،د غونډېدلو د پاره مقرر ځاے ـ

**ـــــ کول** :- اص ،د غونډېدلو د پاره ځاے مقررول ـ

**درب** :- (دْ+رَ+بْ) ،[پ ، اس ، مذ ](۱) يو قسم وابښۀ

که څښتن ئې په خپل فضل ږمنځ نۀ کا
ښې ښې ږيرې به شي سپکې لکه درب (حميد)

(۲) دڅيز د راپرېوتلو آواز-(۳) آوازه، دبدبه-(۴) يو قسم اتڼ يا ګډا ـ
(۵) دخرونويوه بيماري ـ

**دربا** :- (دْ+ر+با)[پ ،اس صو ]در بهار ،د درب دروُب آواز-

**دربار** :- (دَ+رْ+با+رْ)[فا، اس ، مذ، وا ، ج : دربارُونه ] (۱) دلبار ،د بادشاهانو يا اميرانو د عدالت او ملاقات ځاے-

مظلومانو وته ځۀ خو نظر وکړه
په دربار دې فريادي دې ډېرې ختې (خوشحال)

(۲) ستانه ،بارګاه ،د درويشانو دلبار ـ

بادشاهان ددې دنيا واړه پراتۀ دي
لکه خاورې په دربار د درويشانو (رحمٰن)

**درباري** :- (دَ+رْ+با+رِيْ)[پ ، اس ، مذ ، وا ، ج :درباريان]، دربارسره تعلق لرُونکے، دلباري ـ

**دربان** :- (دَ+رْ+با+نْ)[فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : دربانان] څوکيدار، پېره دار، دروانچي

هر چې کاندي نوکري د بادشاهانو

خامخا بــه د دربانو منت بار وي (رحمٰن)

**درباني** :-(دَ+رْ+با+نِيْ)[فا ، اس ، مؤ ] څوکيداري، پېره، دروانچي توب.

دربــاني لکــه حبــاب د خپل گنبد کړه

يــو نفس دې پــه سينه کښې واپسين دے (کاظم خان)

**دربجن** :- (دْ+رَ+بْ+جَ+نْ)[پ ،ص ،مذ ،مؤ، وا : دربجنه ج : دربجنې]دُوپيا ، پټ پېزن ،د څناورو يو قسم بيماري ـ

**ـــ کول** :-اص ، دُوپيا کول ـ

**ـــ کېدل** :-اص ،دُوپيا کېدل ـ

**درب دربانے** :- (درب+دَ+رْ+با+نے)[اَف : پ (قاموس )اس ، مذ ] الله داد ،يو قسم لوبه ـ

**درب دُوب** :- (دْ+رَ+بْ+دْ+رُو+بْ) ،[پ ، اس ، صو ، مذ ](۱) دبکه درکه ـ (۲) د وهلو ټکولو آواز ، غرز غرُوز ـ

**دربړ** :- (دْ+ر+ب+ړ)[پ ، اس ، ص ، مذ ] غټ پټ،غونډ مونډ ـ

**دربل** :- (دْ+ر+ب+ل) ،[پ ، مص مت ] (۱) په مزکه څۀ څيز آواره ول او د پاسه پرې زور ور کول ،څۀ څيز زيات ډکول ـ(۲) خېټه په خوارک زياته ډکول ـ

**دُربلول** :-(دُ+رْ+ب+لَ+و+لْ)[اَف : پ (قاموس ) مص مت] ښکېلول ،څارورے په دواړو پښو تړل ـ

**دُربلونه** :- (دُ+رْ+ب+لَ+و+نهَ) [اَف: پ (قاموس ) حمص] ښکېلونه ، څاروے په دواړو پښو تړنه ـ

**دُربلوُونکے** :-(دُ+رْ+ب+لْ+وُو+نْ+کےَ)[اَف : پ (قاموس ) اس فاع ، مذ ، وا ، ج : دُربلـوونکي ،مؤ:دربلـونکې] ښـکېلوؤنکے څـاروے ددواړو پښـونه ترُونکے ـ

**دربله** :- (دْ+رَ+بْ+لـهَ) ،[پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : دربلې] (۱) سخته شوې سره چې دڅاروو تر پښو لاندې راغلې وي ـ(۲) بُوښه، گنده، بدبويه ـ(۳) غټه بې ډوله ډوډۍ ـ

**دربلـے** :- (دَ+ر+ب+لَ+ی) [پ ، اس ، مؤ ](۱) د درې پښـو چـوکۍ يـا مېـز ـ (۲) درې پرېز ټال ـ(۳) ددريـو لرگونـه جوړ هغـه ټال چې د لسـی غړگه په کښې را اوېزانده وي ـ

**دربلے** :- (دْ+رَ+ب+لےَ) ،[پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : دربلي ،مؤ : دربلې](۱) دباؤ کړے شوے ـ(۲) دپښو لاندې ټينگ کړي شوے ،ښخ کړے ـ(۳) ښۀ موړ کړے ـ

**دُربلے** :- (دُ+رْ+ب+لےَ)[ پ ، اس ، مذ ] زولنه، دپښو کړۍ ـ

**دُربلېدل** :- (دُ+رْ+ب+ې+د++لْ)[اَف : پ (قاموس) مص لا] ښکېلېدل ،څاروے د دواړو پښونه ترلے کېدل ـ

**دُربلېدنه** :- (دُ+رْ+ب+ې+د+نهَ)[اَف :پ (قاموس) حمص ]دُربلېدۀ ،ښکېلېدنه، څاروے د دواړو پښو نه ترلے کېدنه ـ

**دربلېــدُونکے** :- (دُ+رْ+ب+ې+دُو+نْ+کےَ) ،[اَف : پ (قـاموس ) مف،مذ ،وا ،ج: دُربلېدُونکي ،مؤ :دُربلېدُونکې] ـ ښکېلېدونکے ، څاروے د پښـو نـه ترلے کېدُونکے ـ

**دُربلېدۀ**:- (دُ+رْ+ب+ې+دہ)[اَف : پ (قاموس) ،حمص ]و - دُربلېدنه.

**دربند** :- (دَ+رْ+بَ+نْ+دْ)[پ ،اس معرفـه] پـه هـزاره ډوېـژن کښې د يـو مشهور کلي نُوم دے چې د پخواني د امب رياست صدر مقام وو.

**دربنه** :- (دْ+رْ+ب+نهَ)[پ ، حمص] ښخونه ـ

**دربنې** :- (دْ+ر+ب+نې)[پ ، اس ، مؤ] ډډه مزکه ـ

**دربــول** :- (دْ+ر+بَ+و+لْ) ،[پ ،مـص مـت ](۱) پـه مزکـه پښـې راخلاصـول ـ (۲) وهل ټکول ـ(۳) څنډل ،ټک وهل ـ

**دربولــل** :- (د+رْ+بـو+لْ+لْ)[اَف : پ (قـاموس ) ،مـص مـت ] رابلـل، ځـان تـه راغوښتل

**دربولے** :- (دْ+ر+بَ+و+لَے) ،[پ، مف، مذ ، وا ،ج : دربولي ،مؤ : دربولې] ،(۱) په مزکه راخلاص کړے ـ(۲) وهلے ټکولے ـ(۳) څنډلے، ټک وهلے ـ

**دربُونکے** :- (دْ+ر+بُـو+نْ+کےَ)[پ ، اس ، فـاع، مـذ ، وا ، ج : دربُـوونکي، مـؤ : دربوونکې] ، ښخوُونکے ـ

**دربونــه** :- (دْ+ر+بَ+و+نـهَ) ،[پ ،حمص ](۱) پـه مزکـه پښـې راخلاصـونه (۲) وهنه ټکنه ـ(۳) څنډنه ،ټک وهنه ـ

**دربُوونکے** :- (دْ+ر+بَ+وُو+ن+کےَ) ،[پ ، اس ، فـا ، مـذ ، وا ، ج : دربـوُونکي، مـؤ : دربــوُونکې] ،(۱) وهُــونکے ټکــوُونکے ـ(۲) څنــډوُونکے ، ټــک وُهونکے ـ(۳) په مزکه راخلاصوُنکے ـ

**دربه** :- (دْ+ر+بهَ) ،[پ ،اس ،مؤ] (۱) تندر، آسماني بجلي ـ(۲) تکه تـوره تيـارۀ ـ (۳) شور زوږ ـ

**ـــ جوړول** :- اص ،شور زوږ کول ـ

**ـــ وهل** :-اص ،تندر پرېوتل، بلاپرې پرېوتل، په سخت مصيبت کښې گېرېدل

**دربهار** :- (دْ+ر+بَ+ها+رْ) ،[پ ، اس ، صو ، مذ] (۱) دربے ، دربا ، دو هلـو ټکولو پرله پسې آواز ـ(۲) تناگړزا ـ

**دربــه دُروبــه** :- (دْ+ر+بهَ+دْ+رُو+بـهَ) پ، اس صـو] درکې، رعب داب ، دُوزې ډازې

**ـــ کول** :-اص،درکې کول، رُعب داب اچول، ډُوزې ډازې کول ـ

**دربے** :- (دْ+ر+بےَ) ،[پ، اس، مذ] و - دربهار ـ

**دربي** :- (دْ+ر+بي)[پ ،اس ،مؤ] ډُوزې،درکې، دپکه درکه، دربي دروُبي ـ

**ـــ کول** :-اص، ډوزې ويشتل،درکې کول،دپکې درکې کول ـ

**دربي دُروبي**:- (دْ+ر+بي+دْ+رُو+بي )[ پ ، اس ، مؤ ] د - دربي ـ

**دربېـدل** :- (دْ+ر+بې+د+لْ) ،[پ، مـص لا] ،(۱) پـه مزکـه پښـې راخلاصـېدل ـ (۲) وهلے ټکولے کېدل ـ(۳) څنډلے کېدل، ټک وهلے کېدل ـ

**دربېدنــه** :- (دْ+ر+بې+د+نـهَ) ، [پ ، حمـص](۱) پـه مزکـه پښـې راخلاسـېدنه (۲) وهلے ټکولے کېدنه ـ(۳) څنډلے کېدنه، ټک وهلے کېدنه، دربېدۀ.

**دربېدُونکے** :- (دْ+ربې+دُو+نْ+کےَ) ،[پ ، مف ، مذ ، وا، ج : دربېدُونکي ، مؤ : دربېدوُنکې](۱) وهلے ټکولے کېدُونکے ـ(۲) څنډلے کېدُونکے ، ټک وهلے کېدُونکے ـ

**دربېدۀ** :- (دْ+ر+بې+ده)[پ ، حمص ] و - دربېدنه ـ

**دربيلـه** :- (دَ+ر+بي+لـهَ)[پ ، اس ، مـؤ ] تکـه تـوره تيـارۀ، اکثر خلق تـوره دربيله وائي

**در پرے** :- (دَ+رَ+پَ+رَے ) ،[اَف : پ (قاموس) اس، مذ ] د گبين د مچو کور، د مچو د ساتلو صندوق ـ

**در په در** :- (دَ+رْ+پـهَ+دَ+رْ)[پ ، ص ] کورپـه کـور، بې کـوره ،بې اوره، سروهلے بروهلے، در په دبکه ـ

ولې په کُوڅه دهغه يارنۀ کړې گذر

ورلره دې بولي تـۀ لاگرځې درپه در (خوشحال)

**ـــ کېدل** :-اص ،بې ځايه کېدل، بې کوره بې اوره کېدل، پـه خوشو سر کېدل، عبث گرځېدل ـ

ستا د درگـدايـان واړه بادشاهـان دي

خو چې ستاله دره اووځي در په در شي (رحمٰن)

**ـــ گرځېدل** :ـ اِص ،کورپه کور گرځېدل ،بې مقصده گرځېدل ـ

همېشه بــه در پــه در گــرځي رټلے
د استــوگــنې ځاے به نۀ مومي چېرته　　(رحمٰن)

**درپيه** :ـ (دَ+رْ+پَ+يهَ)[پ ، اس ،مؤ ، وا ،ج : درپيې]اندرپايه، پوړے۔

**درتاکول**:ـ(دَ+رْ+تا+ک+و+لْ)[پ (اورک)،مص مت] ښئيل ، په گوته کول۔

**درتلـل** :ـ (دَ+رْ+تَ+ل+لْ) ، [پ ، مـص ، مـت] ،(۱) دتـا طـرف تـه درتـگ، دمخاطب په لور ورتلۀ ـ (۲) بل څوک په څۀ پوهېدل ـ

**درته** :ـ (دَ+رْ+تهَ)، [پ، حرف] تاته، تاله، تاوته، تاپه ـ

د هغوله حـال خبرېږه
چې په در درته دُعا کا　　(خوشحال)

**درج** :ـ (د َ+رْ+جْ) ، [ع ، ص ، مـذ ] پـه کتـاب کښـې ليـک، رجسـټرختلے، پـه فهرست کښې شامل ـ

**درجول** :ـ (دَ+رْ+جَ+و+لْ)،[پ ، مص مت ] په رجسټر خېجول، پـه فهرست کښې راوستل ،په کتاب کښې ليکل ـ

**درجونـه** :ـ (دَ+رْ+جَ+و+نـهَ)، [پ ، حمـص] پـه کتـاب کښـې ليکنـه، پـه رجسـټر خېجونه، په فهرست کښې شامولونه ـ

**درجووُنکے** :ـ (دَ+رْ+جَ+وُو+نْ+کےَ) ، [پ ، اس ،فـاع ، مـذ ، وا ج : درجـووُنکي، مو : درجوُنکې] ،په کتاب کښې ليکوُنکے، پـه رجسـټرخېجووُنکے، پـه فهرست کښې شاملووُنکے ـ

**درجه**:ـ(دَ+رْ+جـهَ) [اس، مؤ، وا ، ج : درجې] (۱) ددائـرې ۳۴۰ حصـو نـه يـوه حصه ـ

**ـــ اُوچتول** :ـ اص ،منصب اُوچتول، ترقي ورکول ـ

**ـــ اُوچتېدل** :ـ اص ،منصب اُوچتېدل ،ترقي ورکړے کېدل ـ

**ـــ موندل** :ـ اص،عزت موندل، منصب حاصلول ـ

**په درجه** :ـ اص،(۱) ورو ورو ، په قلاره۔(۱) وار په وار ، د رُتبې په مناسبت۔

**درجـه بنـدي** :ـ (درجه+بَ+نْ+دي)، [فا ، اس ،مـؤ ] پـه درجـو کښـې وېشـل،د صفت او قيمت مطابق جُدا کول ـ

**درجه وار** :ـ (درجه+وا+رْ)[فا ، اس ، ص ، مذ ] درجه په درجه، پوړۍ په پـوړۍ، وار په وار ـ

**درجېـدل** :ـ (دَ+رْ+جې+د+لْ )[پ ،مص لا] پـه کتـاب کښـې ليـکلے کېـدل، پـه رجسټرختل، په فهرست کښې شاملېدل ـ

**درجېدنـه** :ـ (دَ+رْ+جې+د+نـهَ)[پ ، حمـص] پـه کتـاب کښـې ليکنـه، پـه رجسـټر خېژونه،په فهرست کښې شاملونه،درجېدۀ ـ

**درجېدوُنکے** :ـ (دَ+رْ+جې+دُو+نْ+کےَ)[پ، مف ،مذ ، وا، ج : درجېدوُنکي، مؤ درجېدوُنکې] په کتاب کښې ليکلے کېدوُنکے، په رجسټر خېژېدوُنکے، په فهرست کښې شاملېدوُنکے ـ

**درجېدۀ** :ـ (دَ+رْ+جې+دهٔ)[پ ، حمص] و - درجېدنه ـ

**درځن** :ـ (دَ+رْ+دْ+زَ+نْ)[پ ، اُر : درجن ، اس ،مـذ ، وا ،ج : درځنُونـه ، درځنې] دولس څيزونه ـ

**درځه**:ـ دُ+رْ+دز+ه)[پ ، اس ، مؤ ، وا، ج : درځې] سُورے، سوره ،موری، درز۔

**درځي** :ـ (دَ+رْ+د+زي ) ، [پ ، قع ] (۱) تاپلور درځي۔(۲) تۀ پرې پوهېږې۔

**درڅک** :ـ (د+رْ+څ+کْ)، [پ ، ص ] زيات ډک ـ

**ـــ کول** :ـ اِص ،زيات ډکول۔

**ـــ کېدل** :ـ اِص، زيات کېدل ـ

**درڅل** :ـ (دُ+رْ+څ+لْ)[پ ، مص مت ] انړے کول، انتروشے کول، اتښوشے کول ـ

**درڅل**:ـ(دَ+رْ+څَ+لْ)[پ ، اس ، مذ]په يو مخه روان،په بهير روان، پرله پسې جاري

**ـــ کول** :ـ اص ،په اېرتلل، په بهير تلل،پرله پسې جاري کول ـ

**ـــ کېدل** :ـ اص ،پرله پسې جاري کېدل ـ

**درڅلے** :ـ (دْ+ر+څ+لَے)، [پ ، مف ، مذ] انتروُشى شوے ـ

**درڅنه** :ـ (د+ر+څ+نه)، [پ ، اس ، مؤ] ، انتروُشے، انتبوشے ،انړے ـ

**درڅول** :ـ (دْ+ر+څ+و+لْ) ،[پ ، مص ، مت] په چا انتروُشے کول، انړے راوستل،درڅونگ ـ

**درڅولے** :ـ (دْ+ر+څَ+و+لَے)، [پ ،مف ، مذ ، وا ، ج : درڅولي، مؤ : درڅولې] په چا انتروُشے کړے، انتروُشولے، پرنجولے ـ

**درڅوُنکے** :ـ (دْ+ر+څوُ+نْ+کےَ) ، [پ ،اس ،فاع ،مذ، وا ،ج:درڅوُنکي ، مؤ: درڅوُنکې] انتروُشے کووُنکے، پرنجوُنکے ـ

**درڅونگ** :ـ (دْ+ر+څ+و+نْ+گْ) ، [اَف : پ (قاموس) حمص] درڅونه، انتروُشونه ـ

**درڅونه** :ـ (دْ+ر+څَ+و+نهَ) ، [پ ، حمص ] و - درڅونگ ـ

**درڅووُنکے** :ـ (دْ+ر+څ+وُو+نْ+کےَ) ، [پ ، اس ، فـاع ، مـذ ، وا، ج : درڅـووُنکي، مؤ : درڅووُنکې] انتروشووُنکے، پرنجووُنکے ـ

**دُرخانۍ** :ـ (دُ+رْ+خا+نۍ)،[پ ، اس، معرفه ، مؤ] (۱) د پښتـو عـوامي قيصـې ادم دُرخانۍ يو مشهور کردار ،دُرخو ـ

زمـــا يقين دے په لحد کښې به هم پټ اُوپالي
سل دُرخانۍ ترې نه قربان شه د پښتو نخښه ده　　(پريشان خټک)

(۲) دپښتنو جينکو يو عام نُوم۔(۳) د پټ مينې او ښائېست يوه نمونه ـ

**دُرخو** :ـ (دُ+رْ+خو)، [اس ، معرفه ، مؤ ] و - دُرخانۍ ـ

که دُرخووے نن له تا به ئې ښائست غوښت
ادم خــان بــه ورو د مــينــې پــور لــه مــا　　(علي خان)

**درخواسـت** :ـ (دَ+رخـا+س+تْ) [فـا ، اس ،مـذ ، وا ، ج : درخواسـتُونه] (۱) عرضي ـ (۲) خواهش ـ

**ـــ کول** :ـ اص ،عرضي کول، سوال کول ـ

**ـــ ليکل** :ـ اص ،عرضي ليکل ـ

**ـــ ورکول** :ـ اص ،عرضي ورکول ـ

**درخه** :ـ (د+رْ+خهَ) ، [پ (اورک) حرف] دېخوا ، دلته ـ

درخـــه راشـــه چې مې زړۀ شي پـــه ارام
ستا په مينې کښې ورک شوے ډېرستومان　　(صادق الله اورکزے)

**درد** :ـ (دَ+رْ+دْ) [پ ، اس، مـذ ، وا ، ج : دردُونـه ] (۱) خـوږ ، چړيکـه، بـرېښ، درد ـ

دردوغم به دې د زړۀ ولې کاغوڅې
گرفتار په دردوغم د جانان مه شه　　(رحمٰن)

(۲) قهر ، غصّه، سوخت ـ

**ـــ کول** :ـ اص، (۱) خوږېدل ـ(۲) غصّه کول، قهر کول سُوختېدل ـ

**ـــ وراتلل** :ـ اص ،غصّه کېدل، قهراختسل، سَوختېدل ـ

**دُردانه** :ـ (دُ+رْ+دا+نهَ)، [فا ، اس ، مؤ، وا ، ج : دُردانې]قيمتي څيز ـ

هـغه بـحر چې محيط دے په افراط اوپه تفريط دے
دغـــه بـــحر دُردانـــه وم دُرد دانـــه يـم لاتـــراوسه　　(خوشحال)

**در در** :ـ (د+رْ+د+رْ)، [پ ،اس ، مو ] په يو مخه د باران د څاڅکو اواز ـ

تــوري لـړې خورېدلے سيلۍ تېره شوه طوفان شو
ټپ ټپ پرېوتل څــو څاڅکي په دردرشروع باران شو　غازي سيال)

**په درد راتلل** :ـ اص، تېز باران راتلل ـ

دا حميــد د يـــار دخـط لـــه غمـــه ژاړي
کـــه بـــاران د پســـرلي پـــه در در راغـــے

**درد سر**:۔ (دَ+ر+د+سَ+رْ)، [فا ، اس، مرکب] (۱) د سر درد۔(۲) د تکلیف باعث

وي مي که زهٔ ستا په کوئي کنبې وُمرم ستا رضاده
وي ئي کشکي خلاص له دردِ سره سپي زما کړي (خوشحال)

**دردک**:۔ (د+رْ+د+کْ)[اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ، مؤ ، وا : دردکه ،ج : دردکې] ماستهٔ یا بل شے چي غُوټي غُوټي وي۔

**ـــ کېدل**:۔ (اَف) اص ،ماستهٔ غوټي غُوټي کېدل۔

**دردمن**:۔ (دَ+ر+د+مَ+نْ)پ ، اس ، ص ، مذ ، مؤ، وا : دردمنه ،ج : دردمنې] دردمند ،دړدمن ،دردېدلے۔

روغوشـهٔ زده د حمیـد د زړهٔ لـه درده
د درد مـن پـه حـال پـوهېږي دردمـن خلـق

**ـــ کېدل**:۔ اص ،دړدېدل،زړهٔ ته خُوږ رسېدل۔

**دردمند**:۔ (دَ+رْ+دْ+مَ+نْ+دْ)[فا ، اس ، ص ، مذ] و - دردمن۔

همګي ئې ستا له مخه ګفتګو شي
چې دردمند وبله ټول شي مشغولاکا (خوشحال)

**دردمندي**:۔(دَ+رْ+دْ+مَ+نْ+دي) [پ ، اس، مؤ] دړدمني،تکلیف ،خُوږ۔

خدا ے هاله د سرِي یاد شي چي دردمند شي
کمـه نـهٔ ده دردمنـدي لـه عبـادته (رحمٰن)

**دردمني**:۔ (دَ+رْ+دْ+مَ+ني)[پ، فا : دردمندي ،اس ص ، مؤ] درد رسېدنه، دردمنتوب ،درد رسېدنه۔

خـدا ے هالهٔ دسرِي يـاد شي چې دردمند شي
هـېڅ کـم نـهٔ ده دردمـني لـه عـبادتـه (رحمان)

**دردوغم**:۔(دَ+رْ+دُ+غَ+مْ)[فا ، اس مرکب ] غم دړد خُوږ ،تکلیف۔

درد وغم دے هرموره نهٔ دے
چـې ئي اوکنبم پـه کاتب (رحمٰن)

**دردول**:۔ (دَ+رْ+دَ+و+لْ) ،[پ ، مص مت ] (۱) تنګول، کړول، زړهٔ تـه تکلیف رسول ،خُوږ رسول، دړدول۔(۲) غصّه کول ،سُوختول۔

**دردولے**:۔ (دَ+ر+د+لَے) د ، [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج : دردولي، مؤ : دردولې] (۱) تنګ کړے، کړولے۔(۲) قهرولے، سُوخت کړے۔

**دردونه**:۔(دَ+رْ+د+و+نهَ) ،[پ ، حمص ] (۱) تنګونه، کړونه۔(۲) قهرونه سوختونه

**دردوُونکے**:۔ (دَ+رْ+دَ+وُو+نْ+کَے)[پ ، اس ، فاع، مذ، وا، ج : دردوونکي ،مؤ : دردوونکې] تنګوونکے، کړوونکے، زړهٔ ته تکلیف رسوُونکے۔

دا دردوُونکے سودا سر کنبې لري
غـوټۍ به ګُل شي که به اُورژېږي (پرېشان خټک)

**دردېدل**:۔ (دَ+رْ+دې+دَ+لْ)، [پ ، مص لا (۱) تنګېدل، کړېدل،زړهٔ تـه تکلیف رسېدل۔(۲) قهرېدل، سوختېدل۔

**دردېـدلے**:۔ (دَ+رْ+دې+د+لَے)، اپ،مـف، مـذ ،وا، ج : دردېـدلي، مـؤ : دردېدلې] (۱) کړېدلے ،زړهٔ ته تکلیف رسېدلے۔(۲) قهرېدلے سوختېدلے۔

**دردېدنـه**:۔ (دَ+رْ+دې+د+نـهَ)، [پ ، حمـص] (۱) کړېـدلے ،زړهٔ تـه تکلیـف رسېدلے۔(۲) قهرېدنه،سوختېدنه،دردېدهٔ۔

**دردېدُونکے**:۔ (دَ+رْ+دې+وُو+نْ+کَے) ،[پ، مف ،مذ ، وا، ج: دردېدُونکي، مؤ : دردېـدُنکې] (۱) کړېـدُونکے، زړهٔ تـه تکلیـف رسـېدونکے۔(۲) قهرېدُونکے، سوختېدُونکے۔

**دردېدهٔ**:۔ (دَ+رْ+دې+ده)[پ ،حمص ] و - دردېدنه۔

**درذغن**:۔ (د+ر+ذْ+غ+نْ)، [اَف : پ (قاموس) اس، مذ ، وا] درغن، د مرچ مسالو د وړولو اَوار کانړے۔

**دُرړ**:۔ (دُ+رَ+ړْ)[پ (ګن) اس، مذ ] د زنانهٔ د سرو زرو یو کالے۔

**درړول**:۔ (دَ+رْ+ړَ+و+لْ)[پ، مص مت] په منډه کول، په مخه اخستل ،پـه تـرړه کول، وررَول۔

**درړولے**:۔ (دَ+رْ+ړ+و+لَے)[پ، مف، مذ، وا ، ج : درړولي، مؤ : درړولې]په منډه کړے ،زغابنتولے، په تـرړه کړے، وررړولے۔

**درړونـه**:۔ (دَ+رْ+ړ+و+نـهَ)[پ ، حمـص] پـه منـډه کونـه، زغابنـتونه، پـه تـرړه کونه،وررړونه۔

**در ړوُونکے**:۔ (دَ+رْ+ړَ+وُو+نْ+کَے)[پ، اس، فـاع، مـذ، وا، ج : درړوُونکي، مـؤ : درړوُونکې] په ترړه کوونکے، وررړوونکے، درړوُولے۔

**در ړوُونـے**:۔ (دَ+رْ+ړَ+وُو+نـےَ)[پ، اس ، فـاع، مـذ ، وا، ج : درړوُونـي ،مـؤ : درړوونې] و - درړوُونکے۔

**درړه**:۔ (دَ+رْ+ړَه)[پ، اس ،مؤ ،وا ، ج : درړې] منډه ،دو زغابنت، ترړه،درګه۔

**درز**:۔ (د+رَ+زْ) [پ، اس صـو، مـذ] (۱) د شـهٔ شيـز د غورځېـدلو اَواز۔(۲) مشهورېدل،نامه۔

**ـــ ختل**:۔اص ،(۱) د غورځېدلو اَواز راتلل۔(۲) مشهورېدل، نامه کېدل۔

**درز**:۔ (د+رَ+زْ)[اَف :پ (قاموس) اس ،مذ ] سپاچه،تنګاچه، دببڅه، دُونکاچه۔

**درز**:۔(د+رْ+زْ)[فا ، اس، مذ، وا ، ج : در زُونه] چاؤد ،چُون، چوند ، درځه۔

**درزا**:۔ (دْ+ر+زا)، [پ، اس، صو ، مذ] (۱) درزهار ،د ټوپې یا د ټوپک پرله پسے اَواز، درزے۔(۲) د وهلـو ټکولـو اَواز۔(۳) د چـا د پښـو اَواز (۴) د زړهٔ حرکت۔

روح مي هـوا کـوي د دنګو جګوغرونو سره
د زړهٔ درزا مي یو ځاے کېږي د سیندونوسره (پرېشان خټک)

**ـــ کـول**:۔اص، (۱) د ټوپـک یـا تـوپې د ډزونـو اَواز۔(۲) د وهلـو ټکولـو اَواز راختل۔(۳) د چا د پښو اَواز راتلل۔(۴) د زړهٔ درزېدل۔

**درزا دُروز**:۔ (د+ر+زا+د+رُو+ز) (پ، اس، صـو، مـذ) درز دروُز، غـرب غروُب،شور ژوږ د وهلو ټکولو اَواز۔

**درز دُروز**:۔(دْ+ر+ز+د+رُو+زْ)[پ، اس ،صو ،مذ] و - درزا دُروز۔

**درزنده**:۔ (دْ+رَ+ز+نْ+ده)، [اَف :پ (قاموس) اس، مؤ] (۱) لوئېرنده۔(۲) د غـرهٔ پاس اَوار سر، درزنے۔

**درزنے**:۔(دْ+رَ+ز+نےَ)[اَف : پ (قاموس) اس، مذ]و - درزنده ۔(۲)

**درزول**:۔ (دْ+رَ+ز+و+لْ)[پ، مص، مت ] (۱) وهل ټکول۔(۲) پرله پسې د ټوپک بارچلول۔

**درزولـے**:۔ (دْ+ر+زَ+و+لـےَ) ،[پ ، مـذ ، وا ،ج : درزولـي، مـؤ : درزولـې] (۱) وهلے ټکولے۔ (۲) پرله پسې ټوپک چلولے۔

**درزونګ**:۔ (دْ+ر+زْ+و+نْ+ګْ) ،[اَف : پ (قاموس) حمص ] (۱) درزونه، وهنـه ټکونه۔(۲) پرله پسې ټوپک چلونه۔

**درزونه**:۔ (دْ+ر+زْ+و+نهَ) ،[پ ، حمص ] و - در زونګ۔

**درزوُونکے**:۔ (دْ+ر+زْ+وُو+ن+کَے) ،[پ، اس، فاع، مذ، وا، ج : درزوُونکي، مؤ : درزوُونکې] (۱) وهُونکے ټکوونکے۔(۲) پرله پسې ټوپک چلوؤنکے۔

**درزهار**:۔ (دْ+ر+زْ+ها+رْ)، [پ، اس، ص، مذ] و - درزا۔

**درزے**:۔ (دْ+ر+زَ+ے) [اَف : پ (قاموس) اس، مذ] و - درزا۔

**درزي**:۔ (دَ+رْ+زي)، [فـا، اس، مـذ ، وا، ج : درزیـان (مـؤ، وا درزنیـه]جـامې ګنډوُنکے، د جامو ګنډلو کسب ګر۔

خپله اغـوسـتي تور پړُوني ګُوري توري جامې
چي نئ ئي وینځي په درزي نهٔ په دوبیانو باندي (پرېشان خټک)

**درزېدل**:۔ (دْ+ر+زې+د+لْ) [پ، مص لا] (۱) وهلے کېدل۔(۲) دزړهٔ د حرکت اَواز

**درزېدلے**:۔ (دْ+ر+زې+د+لَے) ،[پ، مف، مذ ، وا ، ج : درزېدلي ،مؤ : درزېدلې] (۱) وهلے شوے۔(۲) د زړهٔ حرکت کړے۔

**درزبدنګ** :- (دُ+ر+زي+دَ+نْ+ګْ)، [اَف ،پ (قاموس) حمص] درزبدنه، درزبدهٔ -
(۱) وهلے کېدنه-(۲) د زړهٔ حرکت کونه -

**درزبدنه** :- (دُ+ر+زي+د+نه)[پ، حمص]درزبدنګ-

**درزبدُونکے** :- (دُ+ر+زي+دُو+نْ+کےَ ، [پ، مف، مذ، وا، ج : درزبدُونکي، مؤ : درزبدوُونکې] (۱) وهلے کېدونکے-(۲) د زړهٔ حرکت کووُنکے -

**درزبدهٔ** :- (دُ+ر+زي+ده ) ،[پ ، حمص ] و - درزبدنګ -

**درس** :- (دَ+رْ+سْ)[ع ،اس، مـذ، وا، ج : درسُـونه] (۱) لوسـته، سـبق ،زدهٔ کـړه، تعليم -

د درويش علم په درس په مکتب نهٔ دے
تـــل نـــظر لـــري پـــه لـوح او پـــه قلم (خوشحال)

(۲) وعظ ، نصيحت -

**ـــ اخستل** :- اص ،نصيحت حاصلول -

**ـــ اچول** :- اص، په مدرسه کښې د اخلول، سبق ته لېږل -

**ـــ تـه کښېناستـل** :-اِص، (۱) تعليم ورکـول شـروع کـول-(۲) دوعـظ نصيحت اورېدو د پاره جمع کېدل -

**ـــ خلاصول** :- اِص، (۱) مدرسه شروع کول -(۲) سبق پوره کول -

**ـــ ښئيل** :- اِص، درس ورکول، تعليم ورکول، لولول، سبق ښئيل -

**ـــ ورکول** :- اِص، و - درس ښئيل -

**ـــ وئيل** :- اِص، (۱) سبق وئيل-(۲) وعظ نصيحت کول -

**په درس کښې لوستل** :- اِص، په مدرسه کښې زدهٔ کړه کول -

مـــا د عشق په درس کښې نورڅهٔ لوستي نهٔ دي
بـــې لـــه زلـــفو، بـــې لـــه خـط و بـــې له خاله (رحمٰن)

**درسال** :- (دَ+رْ+سا+لْ)، [پ (ګن) اس، مذ ، وا ،ج: دروسالُونه]دُرشل،درشائي-

**درست**:- (دُ+ر+س+تْ)، [پ،اس،مذ ،مؤ:درسته] ټول، کُلهم، پُوره،سالم -

بندپه بند دلاس وګوتې وبله کښېږدي
سرتـه پايه درست صورت سره يو رازکا (خوشحال)

**دُرست** :- (دُ+رُ+س+تْ+)[فا، ص ، مذ ، مؤ :دُرسته] ټيک،صحيح -

**درسـتوالے** :- (دُ+رَ+س+تْ+وا+لَے)، [پ ،ص ] ټيک والے،صحيح والے،سرته رسېدنه،پُوره کېدنه -

**درسـتول** :- (دُ+رَ+س+تَ+و+لْ) ،[پ، مـص مـت] ټيـک کـول، سَـمول، سـرته رسول، پُوره کول -

**درسـتُون**:-(دُ+رَ+س+تو+نْ)[اَف:پ (قاموس) اِس، مذ ]مخامخ بنيادم ته پام کول -

**درستونه** :- (دُ+رَ+س+ت+و+نَه)، [اَف : پ (قـاموس) ،حمـص] مخامخ بنيـادم تـه پام کَونه -

**درسـتووُنکے** :- (دُ+رَ+س+ت+وو+نْ+کَے) ،[اَف : پ (قـاموس) اس فـاع، مـذ ، وا ،ج : درستوونکي، مؤ :-، درستووُنکې] مخامخ بنيادم ته پام کووُنکے -

**درسته** :- (د+رَ+س+تَـه) ، [پ، اس، مـؤ، وا، ج : درستې] (۱) تـرکش، دغشـو کښېږدو کڅوړه-(۲) وسله -

بې عمله علميت څهٔ پکار نهٔ دے
لـــکه ښځه تر ملا اوتړي درسته (رحمٰن)

**درسته واله** :- (درسته +وا+لَـه)[اَف : پ (قـاموس)اِس ص] د وسلې خاوند ،وسله دار

**درستے** :- (دُ+ر+س+تےَ ، [اَف: پ (قـاموس) اِس، مـذ ،وا ،ج : درستي]ګـواه، شاهد

**درستېدل** :- (دُ+ر+س+تې+د+لْ)، [پ ، مـص لا ] ټيـک کېـدل، صحيح کېـدل، سمېدل ،سرته رسېدل، پُوره کېدل -

**درستېدنګ** :- (دُ+ر+س+تې+دَ+نْ+ګْ)[اَف : پ (قـاموس) ،حمـص] درستېدنه، درستېدهٔ، ټيک کېدهٔ، صحيح کېدهٔ، سمېدهٔ،سرته رسېدهٔ ،پوره کېدهٔ

**درستېدنه**:-(دُ+ر+س+تې+د+نَه) [پ ،حمص] و - درستېدنګ -

**درستېدُونکے** :-(دُ+ر+س+تې+دُو+نْ+کَے)[پ، مف، مذ، وا،ج: درستېدُونکي، مؤ: درسـتېدُونکې] ټيـک کېـدُونکے، سمېدُونکے ،سـرته رسـېدُونکے، پُـوره کېدُونکے -

**درستېدهٔ** :- (دُ+ر+س+تې+ده)، [پ ، حمص] و - درستېدنګ -

**درسره** :- (دَ+رْ+س+رَه)، [پ ، حرف] د تا سره، تاڅخه -

وايـه زما درسره پاتې څهٔ دي
دچا به وي زما لاسونه پرېږده (پرېشان خټک)

**درسـمند** :- (دَ+رْ+س+مَ+نْ+دْ) ، [پ ،اِس معرفـه] د کوهـاټ پـه ضـلع کښـې پـه هنګو تحصيل کښې د بنګښو يو کلے -

کريلـــې مـــرچ پـــه ترخـــاؤ قبلېـــږي
تـــهٔ تـــرې مـــولـې ددرســـمند جـــوړوې

**درس نظـامي** :- (درس+نِ + ظـا +مـي )[فـا ،اِس، مرکـب] د اسـلامي تعلـيم د ورکولو يوه طريقه -

**درسه** :- (دَ+رْ+سَه)، [پ، اس، مؤ، وا، ج : درسې] دريڅهٔ کړکۍ -

**درسي** :- (دَ+رْ+سي)، [پ ، اس ، ص] د درس سره تعلق لرونکے -

**درشائي** :- (دُ+ر+شا+ئي)، [پ ،اس ] درسال، دُرشل -

**درشته**:- (د+رُ+ش+تَه)[اَف : پ (قاموس)اس ، مؤ]دروېشته، داُوربشې بُوس -

**دُرشـــل** :- (دُ+رْ+ش+لْ)، [پ ،اس، مـؤ، وا ، ج : دُرشلې]درسـال، درشـائي، ددروازې د چوکاټ څلور لرګي -

داتش په قيصونـــهٔ شي څو عمل ورسره نهٔ وي
دُرشل بـــه څنګه يو شي چې وي ورجداجدا (پُردل خټک)

**درشـل** :- (دَ+رْ+ش+لْ)، [اَف : پ (قـاموس) اِس، مـذ ] يـوه مشـهوره سبزي چې زيړګل او ورکوټي پاڼې لري او د زړهٔ د دړد د پاره فائده رسوي -

**درشـن** :- (دَ+رْ+ش+نْ)، [ه، اس، مـذ ، وا ، ج : درشنونُه] (۱) دېـدن، ليـدل، کتـل (۲) نمائش، فېشن -

**ـــ کول** :- اص ،ځان ښهٔ جوړول، فېشن برابرول -

**ـــ ورکول** :- اص، (۱) د دېدن موقعه په لاس ورکول-(۲) چاته ځان ښودل -

**درشني** :- (دَ+رْ+ش+ني)، [پ ،اس، مـذ ، وا ، ج : درشينان] فېشـني، ټـېم ټپـاس کووُنکے، ځان جوړووُنکے-

**درشول** :- (دَ+رْ+شو+لْ) ،[اَف : پ (قاموس)اِس ، مذ] ديرشل ،يو قسم بُوټے چې د بهار په موسم کښې راټوکېږي ،يو ميټرقدر لوئېږي ،ډېر خواږهٔ ګلونه لري ،او د شاتو مچئ‌ترې ډېره فائده اخلي -

**درشُونړے**:-(دَ+رْ+اُو+نْ+ړَے)[اَف : پ (قاموس) اس ،مذ ] اُوربُوز، تندُورے -

**درښتن** :- (دُ+ر+ش+ياخْ+تَ+نْ)، [اَف : پ (قاموس) اِس ،مذ ] نېکي، ښېګړه، مرسته، فائده، پره ،

**ـــ کول** :- (اَف ) اص ،نېکي کول،ښېګړه کول، مرسته کول، پره کول -

**درغـــزن** :- (دُ+رَ+غْ+ز+ن )، [اَف :پ (قـاموس) اِس ] درغـــن، درغـــن، د مـــرچ مسالې ميده کولو اَوارکانړے -

**درغل** :- (دَ+رْ+غَ+لْ) ، [پ ، اس ، مذ ] (۱) کوټه-(۲) منافق سړے، بې اعتباره بنيادم-(۳) بند ،راګېر -(۴) پرېشانه، خفه -

پـــوهـېـدلم نـهٔ درغل چــې
زړهٔ خـوشحـاله نهٔ وو خپل چې (پُردل خټک)

**درغلندي**:-(دَ+رْ+غَ+لَ+نْ+دي)[اَف : پ (قاموس ) اس، مؤ ]منافقت، دوه رنګې

**درغلنه** :-(دَ+رْ+غَ+ل+نَه)[پ ، حمص ]منافقت، دوه رنګي، خيانت -

ـــ **کول** :ـ اص ،منافقت کول، دوه رنګي کول، خیانت کول ـ

**درغلو** :ـ (دَ+رْ+غَ+لو)، [پ،حرف،مذ، وا، ج : درغلۀ (مؤ، وا : درغله ج : درغلې] ، درغلې، تاپلورلړ ـ

**درغلول** :ـ (دَ+رْ+غَ+لَ+و+لْ) [اَف : پ (قاموس) مص مت ] (۱) راګېرول، را ایسارَول ـ

**درغلولې** :ـ (دَ+رْ+غَ+لَ+و+لې) ، [اَف : پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج : درغلولي ، مؤ : درغلولې] ـ (۱) ناقلاره کړے، بې تابه کړے ـ (۲) راګېر کړے ، را ایسار کړے ـ

**درغلونه** :ـ (دَ+رْ+غَ+لَ+و+نهَ) [اَف : پ (قاموس) حمص )] (۱) راګېرونه ، را یسارونه

**درغلووُنکے** :ـ (دَ+رْ+غَ+لَ+وُو+نْ+کےَ) ، [اَف :پ (قاموس)اس، فاع، مذ، وا، ج : درغلووُنکي، ج : درغلوُونکې] (۱) ناقلاره کووُنکے، بې تابه کوونکے ـ (۲) راګېروُنکے، را ایساروونکے ـ

**درغلي** :ـ (دَ+رْ+غَ+لي )[پ ، اس ، مذ ، وا] چلول،منافقت، ټګي تیوري ـ

ـــ **کول** :ـ اص، چلول کول،منافقت کول، ټګي تیوري کول ـ

**درغلے** :ـ (دَ+رْ+غَ+لَے)، [پ، اس، مذ، وا، ج : درغلي، مؤ : درغلې]چلولي، چال باز،ټګ ـ

**درغلے** :ـ (د+رَ+غ+لَے)[پ، مف، مذ، و،ا ج : درغلي، مؤ : درغلې] درتللے، تا ته لېږلے ـ

**درغلے** :ـ (د+رَ+غْ+لےَ)[پ (ګن) حرف، مذ، وا، ج : درغلۀ، (مؤ، وا : درغله ج : درغلې)] و - درغلو ـ

**درغلېدل**:ـ (دَ+رْ+غَ+ې+د+لْ) [پ ، مص لا (۱) نا قلاره کېدل ـ(۲) ګېرېدل، ایسارېدل ـ

**درغلېدنه** :ـ (دَ+رْ+غَ+ې+د+نهَ) ، [پ ،حمص ](۱) درغلېدۀ، ناقلاره کېدۀ ـ(۲) ګېرېدنه، ایسارېدنه ـ

**درغلېدُونکے** :ـ (دَ+رْ+غَ+ې+دُو+نْ+کَے) ، [پ، مج ،مذ ، وا، ج : درغلېدُونکي، مؤ : درغلېدُونکې] (۱) ناقلاره کېدوُنکے ـ(۲) ګېرېدُونکے، ایسارېدُونکے ـ

**درغلېدۀ** :ـ (دَ+رْ+غَ+ې+ده )، [پ ، حمص] و - درغلېدنه ـ

**درغن** :ـ (دْ+ر+غ+نْ)، [اَف : پ (قاموس) اس، مذ] و - درغزن ـ

**درغڼ** :ـ (دْ+ر+غ+ڼْ)،[اَف : پ (قاموس) اس ، مذ ] و - درغزن ـ

**درغنے** :ـ (دْ+ر+غ+نےَ) [اَف : پ (قاموس) اس ،مذ، وا، ج : درغني] پیکو، پائکو

**درغوړه** :ـ (دَ+رْ+غْ+و+ړه)، [اَف : پ (قاموس) اس، مؤ] یو قسم بُوټے چې د څانګونه ئې جاروُګان جوړېږي ـ

**درغوږ** :ـ (دَ+رْ+غْ+وَ+ژْیاګْ ، [اس، مذ ](۱) سُوره،سُورے،درز ـ(۲) د څاروي لږ شان غوږ پرېکول ـ(۳) د منښتې علامه ـ

**درغول** :ـ (دَ+رْ+غو+لْ) ، [پ، اس ،مذ] (۱) په نهریا ویله کښې سُورے یا مورئۍچې د زیاتې اُوبو دپاره جوړه شوې وي ـ(۲) تنګه دره ـ

**درغول** :ـ (د+رْ+غ+و+لْ)[پ ، مص مت] ، دوکه کول ،تېرویستل، تېرباسل، ښویول ـ

**درغول برغول** :ـ (دَ+رْ+غو+ل+بَ+رْ+غو+لْ)، [پ ، ص] تس نس، ګډوډ، درهم برهم، پېچیده ـ

ـــ **کول**:ـاص ،تس نس کول، ګډوډ کول، درهم برهم کول، پېچیده کول ـ

ـــ **کېدل** :ـ اص ،تس نس کېدل، ګډ وډ کېدل، درهم برهم کېدل پېچیده کېدل

**درغولول** :ـ (دَ+رْ+غو+ل+و+لْ)، [اَف : پ (قاموس) مص مت] د نهر یا ولې اوبه په ناکه یا موری پرېښودل ـ

**درغولونه** :ـ (دَ+رْ+غو+ل+و+نَه)، [اَف : پ (قاموس) ، حمص] د نهر یا ولې اُوبۀ په ناکه یا موری پرېښونه ـ

**درغولووُنکے** :ـ (دَ+رْ+غو+ل+وُو+نْ+کےَ)، [اَف : پ (قاموس) اس ،فاع ، مذ ، وا، ج : درغولوُونکي،مو : درغولوُونکې] د نهر یا ولې اوبۀ په ناکه یا موری راپرېښوُونکے ـ

**درغولے** :ـ (د+رْ+غَ+وَ+لے)، [اَف : پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج : درغولي،مؤ : درغولې] دوکه کړے، تېرویستلے، تېرباسلے، ښویَولے ـ

**درغولېدل** :ـ (دَ+رْ+غو+ې+د+لْ)، [اَف : پ (قاموس) مص لا] د نهر یا ولې اوبۀ په ناکه یا موری کښې پرېښولے کېدل ـ

**درغولېدنه** :ـ (د+رْ+غو+ې+د+نه) [اَف :پ (قاموس ) حمص ] د نهر یا ولې اوبۀ په ناکه یا موری پرُېښولے کېدنه ـ

**درغولېدونکے** :ـ (دَ+رْ+غو+ې+دُو+نْ+کَے)، [اَف : پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج : درغولېدُونکي ،مؤ : درغولېدُونکې]په نهر یا وله کښې اوبۀ د ناکې یا موری نه راپرېښودُونکے ـ

**درغونه** :ـ (د+رْ+غ+و+نه)، [اَف : پ (قاموس) حمص ] دوکه کونه، تېرویستنه، تېرباسنه، ښویونه ـ

**درغووُنکے** :ـ(د+رْ+غَ+وُو+نْ+کےَ)[اَف : پ (قاموس) اس، فاع ،مذ، وا، ج : درغووُنکي، مؤ : درغوؤنکې] دوکه کوُونکے، تېرویستوُنکے، تېرباسوُنکے ښویوُونکے ـ

**درغے** :ـ (دَ+رْ+غے)، [پ، حرف، مذ، وا، ج : درغلل (مؤ ،وا : درغله، ج : درغلې] و - درغلو ـ

**درغېدل** :ـ (د+رْ+غې+د+لْ)، [پ، مص لا] دوکه کېدل، تېروتل، تېرباسلے کېدل، ښوئیدل ـ

**درغېدلے** :ـ (دَ+رْ+غې+د+لَے)، [پ، مف ،مذ ،وا، ج : درغېدلي، مؤ :درغېدلې] دوکه شوے، تېروتے، تېر باسلے ښوئېدلے ـ

**درغېدنه** :ـ (د+رْ+غې+د+نه )، [پ ، حمص] درغېدۀ، دوکه کېدنه، تېروتنه، تېرباسلے کېدنه، ښوئېدنه ـ

**درغېدُونکے** :ـ (د+رْ+غې+دُو+نْ+کَے)، [پ ،مف، مذ، وا، ج : درغېدُونکي،مؤ : درغېدُونکې] دوکه کېدُونکے، تېروتُونکے، تېر باسلے کېدونے، ښوئېدوُنکے

**درغېدۀ** :ـ (د+رْ+غې+ده )، [پ ، حمص] و - درغېدنه ـ

**درک** :ـ(دَ+رَ+کْ)[پ، اس، مذ، وا، ج : درکُونه] د کور غولے، انګڼ ـ

دا وباده لګېدلې
په هر کور په هر درک (حمید)

**درک**:ـ(د+رَ+کْ)[پ، اس ،مذ، وا، ج : درکوُنه] نخښه،پته، بندوبست ـ

نۀ بیا د چایو درک
ځانونه شي رانه ورک (پُردل ختک)

ـــ **کول** :ـ اص ،پته کول ، بندوبست کول ـ

ـــ **کېدل** :ـ اص، پته کېدل، بندوبست کېدل ـ

ـــ **لګول** :ـ اص ،پته لګول،معلومول، بندوبست کول ـ

ـــ **لګېدل** :ـ اص ،پته لګېدل، معلومېدل، بندوبست کېدل ـ

ـــ **موندل** :ـ اص ،پته موندل، نخښنه موندل، دڅۀ څیز نه خبرېدل ـ

**بې درکه کېدل** :ـ اص ،ورکېدل، لاپته کېدل ـ

**په درک نۀ پوهېدل** :ـاص ،په بندوبست نۀ پوهېدل،په چل نۀ پوهېدل ـ

**درک** :ـ (دَ+رَ+کْ) ، [اَف : پ (قاموس) اس ،مذ ] (۱) د اُوبوخاتو ځاے، د اوبو راوتو ځاے ـ (۲) موقعه ، ځاے ـ

ـــ **ورل** :ـ اص، د اُوبو ورخ ترل،ورخ ماتېدل یا شلېدل ـ

ـــ **بې درکه ګډېدل**:ـاص ،بې موقعې او بې ځایه خبره کول، بې ګودره ګډېدل ـ

**پردرک خبره کول**:۔ (اَف) اص، په ځای خبره کول، په موقعه خبره کول۔

**درکار** :۔ (دَ+رْ+کا+رْ)، [اَف : پ (قاموس)، اِس ،مذ ] يو قسم بوټی چې وېخ ئې سپين وي او ګل ئې زيړ وي۔

**درکړ** :۔ (دَ+رْ+ک+ړْ)، [اپ، حرف، مذ ، (مؤ، وا : درکړه، ج : درکړې] تاته ئې حواله کړو، درئې کړو۔

**درکړ** :۔ (دْ+رَ+ک+ړْ)، [اَف : پ (قاموس) اِس ،مذ ] د غوايانو د ګاډي يا د ټانګې د پهيې هغه دوه غونډې ټوټې چې په خپلو کښې يو ځای شوې وي۔

**درکړی** :۔ (دَ+رْ+ک+ړ+ی)، [اَف : پ (قاموس) اِس ،مؤ ،وا ، ج : درکړيانې] د غوايانو د ترلو کوټه،غوجل۔

**درکړې** :۔(دَ+رْ+ک+ړَ+ې)[اپ ، حرف] تاته درکړې شوې، درسپارلې شوې۔

**درکول**:۔(د+رْ+ک+و+لْ)[اپ، مص مت ] تاته سپارل، تاته حواله کول ،درسپارل۔

**درکونه**:۔(د+رْ+ک+و+نَه )[اپ ، حمص] درسپارنه، تاته حواله کونه۔

**درکوونکې** :۔(د+رْ+ک+وُو+نْ+کې)[اِس، فاع، مذ، وا، ج : درکوونکي، مؤ : درکوونکې] در سپاروُنکې، تاته حواله کوُونکې۔

**درکې** :۔(د+ر+کې)[اَف :پ (قاموس) اِس، مذ، وا، ج : درکي] يو خاص قسم لُومه ،کوړکی۔

**درکېدل**:۔(د+رْ+کې+د+لْ )[اپ ،مص لا] درسپارېدل،تاته حواله کېدل۔

**درکېدنه** :۔(دَ+رْ+کې+د+نَه)[اپ ، حمص ] درسپارلې کېدنه، تاته درکولې کېدنه،درکېدۀ۔

**درکېدُونکې** :۔(د+رْ+کې+دُو+نْ+کې)[اپ، مف ،مذ، وا، ج : درکېدُونکي،مؤ : درکېدُونکې] درسپارلې کېدونکې، تاته درکولې کېدُونکې۔

**درکېدۀ** :۔(د+رْ+کې+دۀ)، [اپ ، حمص] و - درکېدنه۔

**درګ** :۔(دْ+رَ+ګْ)، [اپ، اِس، صو، مذ] د زړۀ د درزېدو اٰواز۔

**درګا** :۔(دْ+ر+ګا) [اپ، اِس، مؤ] درګ درګ ،درګهار، د زړۀ د درزېدلو پرله پسې اٰواز۔

**درګاه** :۔(دَ+رْ+ګا+هْ)، [فا، اِس ،مذ، وا، ج : درګاهُونه] (۱) دلبار، ستانه

الــــوده لــړلـې درغــې درګـــاه تــــه

هېڅ مې نۀ زده چې به حال د خوشحال څۀ کړې

(۲) مزار، روضه، زيارت۔

**درګد** :۔(دَ+رْ+ګَ+دْ)، [اَف : پ (قاموس) اِس ،مذ] خارګيري۔

**درګرده**:۔(دَ+رْ+ګَ+رْ+دهْ)[اَف : پ (قاموس) ص] پرله پسې، په يو مخ، درګړ۔

**درګړ** :۔(دَ+رْ+ګَ+ړْ)، [اَف : پ (قاموس)، ص ] و - درګرده۔

**درګر** :۔(دْ+ر+ګ+رْ)[اَف : پ (قاموس) اِس، مذ] د کوټې شاتير۔

**درګړي درګړي** :۔(د+رْ+ګ+ړي+د+رْ+ګ+ړي)(پ (سو)،ص] ټوټې ټوټې، ذرې ذرې۔

**درګوهر** :۔(دُ+رْ+ګو+هَ+رْ)، [فا، اِس، ص، مذ] ملغلرې۔

بد اختر به نېک اختر نۀ شي هر ګز

مرغچيچ به دُرګوهر نۀ شي هر ګز (رحمٰن)

**درګه** :۔(د+رْ+ګه)، [اپ، اِس، مؤ، وا، ج : درګې](۱) د پخودکانو او نُلونو ځنګل

څو ډېر دي که قابل وې دا به څۀ بنه به لاکاروو

يــو شــېر د درګې بنۀ دے نه ګيدړ پکښې پنجاه (خوشحال)

(۲) هغه کانه چې مېنځ ئې خالي وي او قلمونه ترې جوړوي۔

**درګه**:۔(دْ+رَ+ګَه) [پ (ګن) اِس، مؤ، وا، ج : درګې] منډه،تړه،ذغاښت، درګهار

**ـــ کول** :۔اِص ،په درګه تلل، په منډه تلل،تړه کول۔

**ـــ په درګه تلل** :۔اص، په منډه تلل، په ذغاښت تلل۔

**درګه** :۔(دْ+رَ+ګهَ)، [اپ، اِس، مؤ] هغه پرې چې په ملا پورې ترلې وي او کشتي پرې راکاږي۔

**درګهار** :۔(دْ+ر+ګ+ها+رْ )[اپ، اِس ،مذ] و - درګه۔

**درګی** :۔(دَ+رْ+ک+ی )، [اپ، اِس معرفه] د ملاکنډ په ايجنسي کښې د لوئې سړک په غاړه يو کلے۔

**درګې** :۔(دْ+رْ+ګې)، [اَف : پ (قاموس) اِس، مذ] (۱) د زړۀ درزا۔(۲) پرله پسې د پښو د درزا اٰواز۔

**ـــ کول** :۔ (اَف)، اِص،(۱) د زړۀ درزا کول۔(۲) پرله پسې د پښو د درزا اٰواز کول۔

**درګي** :۔(دَ+رْ+ګي)، [اَف : (قاموس) ا ،س، مؤ] لويه طاقچه چې پخوا زمانه به د الماری په ځای استعمالېده۔

**درګېدل** :۔(دْ+ر+ګې+د+لْ)، [اپ، (ب ،خ) مص لا] د زړۀ درزېدل۔

**درګېدلے** :۔(دْ+ر+ګې+د+لے)، [اپ، (ب، خ) مف، مذ، وا، ج : درګېدلي، مؤ : درګېدلې] زړۀ درزېدلے۔

**درګېدنه**:۔(دْ+ر+ګې+د+نه)[اپ (ب،خ) حمص ]درګېدۀ، د زړۀ درزېدنه۔

**درګېدُونکے** :۔(دْ+ر+ګې+دُو+نْ+کې)[اپ (ب،خ) مف، مذ، وا، ج : درګېدُونکي، مؤ : درګېدُونکې] زړۀ درزېدُونکے۔

**درګېدۀ** :۔(دْ+ر+ګې+ده)، [اپ ،ب،خ) حمص ] و - درګېدنه۔

**درل** :۔(د+ر+لْ ) ، [اَف : پ (قاموس) مص مت] درېدل، اُودرېدل۔

**درل** :۔(د+رْ+ل+لْ )، [اپ، مص مت] لرل، درلودل، درلوول۔

د بهار ګُلونه بنۀ دي

کـه ئې تـل درلې بقا (خوشحال)

**درلنګی** :۔(دَ+رْ+لَ+نْ+ګی )، [اپ، اِس، مؤ ] و - درمولے۔

**درلنګے** :۔(دَ+رْ+لَ+نْ+ګے)، [اپ (ش) اِس، مذ)]موږے۔

**درلودل** :۔(د+رْ+لو+د+لْ)، [اپ، مص مت ] ،و -درلل-

عاشــقي مجزوبــه حــال هغــه حميــد کــړو

چې پــه نُــوک کښــې ئــې درلــود د جهــان عقــل

**درلودنه** :۔(د+رْ+لو+د+نَه )، [اپ ،حمص] لرنه ، درلودنه۔

**درلودُونکے** :۔(د+رْ+لو+دُو+نْ+کې)، [اپ، فاع، مذ، وا، ج : درلودُونکي ،مؤ : درلوُونکې] لرُونکے، درلودوُونکے درلوُونے۔

**درلوول** :۔(د+رْ+لو+و+لْ)، [اپ ،مص مت] و - درلل۔

**درلوولے** :۔(د+رْ+لو+و+لےَ)، [اپ ،مف ،مذ ،وا، ج : درلوولي، مؤ : درلوولې] لرلے۔

**درلوونه** :۔(د+رْ+لو+و+نَه)[اپ ، حمص ] و - درلودنه۔

**درلووُنکے** :۔(د+رْ+لو+وُ+نْ+کې)، [اپ، فاع ،مذ، وا، ج : درلودُنکي، مؤ: درلووُنکې] و - نکے۔

**درلووُنے** :۔(د+رْ+لو+وُو+نےَ)، [اپ، فاع، مذ، وا ،ج : درلووُني ،مؤ، درلووُنې] درلودُونکے ،لرُونکے، درلووُونکے۔

**درله** :۔(د+رْ+له)، [اپ ، حرف] درته ، ماته۔

**درم** :۔(د+رَ+مْ)[ع ،فا : درهم، اِس، مذ، وا، ج : درمُونه] (۱) روپۍ، نغدي، درهم (۲) يو وزن يا تول چې دوه ماشې او يونيمه رتۍ وي۔

قابل غم د تنګ ونام کا په دنيا کښې

نــۀ پــه غــم وي د ديــنار او د درم (خوشحال)

**درم** :۔(دْ+رَ+مْ)[اپ، اِس صو] درمب، دټوپې غړمب،د ډول اٰواز۔

**درمان** :۔(دَ+رْ+ما+نْ)، [اپ ، اِس ، مذ] دارُو دُرمل، علاج۔

اوس مې درمان دي د دردونو پرېشان خيالوُنه

زخمي سينه مې د طبيب دواتـــئه پاتې نۀ شوه (پرېشان خټک)

**درمانـد** :۔ (دَ+رْ+مـا+نْ+دْ)، [پ ،اِس مـذ ، (مـؤ ،وا ، درمانـده، ج : درمانـدې] مصيبت وهلے، غم زپلے، مجبور، درمانده ۔

د دنـيا سـړي هـمه واړه درماند دي

کـوم بادشاه دے چې منت د وزير نۀ کا (رحمٰن)

**درماندګي** :۔(دَ+رْ+ما+نْ+دْ+ګِي )[پ، اِس ،مؤ] مجبوري،بدبختي۔

که دې وېره شي ه خپلې درماندګۍ

ددرمــاندو دستګيرئې خبردار شه (رحمٰن)

**درمانده** :۔ (دَ+رْ+ما+ن+دهَ)، [پ ، اِس ] و - درماند ۔

همېشه ئې په دا فکر درمانده يم

چې د خوږ خاطر علاج په څۀ کوم (خوشحال)

**درمب** :۔ (دْ+رَ+مْ+بْ )[پ، اِس ،صو] و - درم ۔

**درمبا** :۔ (دْ+رَ+مْ+بـا)، [پ، اِس، صـو، مـؤ] درمبهـار، درزا ، د ډول پرلـه پســې اٰواز، درمبے ۔

**درمبړ** :۔(دْ+رَ+مْ+بَ+ړْ)[پ (خ) اِس، مذ، وا]منداؤ،د دوؤ غوايانو غوبل ۔

**درمبـول** :۔ (دْ+رَ+مْ+ب+و+لْ)[پ، مـص مـت](۱) درزول، وهـل ټکـول (۲) ډول ږغول

**درمبولـے** :۔ (دْ+رَ+مْ+ب+و+لـےَ) ، [پ، مـف ،مـذ ، وا ، ج : درمبـولي، مـؤ : درمبولې](۱) درزولے، وهلے ټکولے۔(۲) ډول ږغولے ۔

**درمبونـه** :۔ (دْ+رَ+مْ+ب+و+نـهَ) [پ ، حمـص] (۱) درزونـه ،وهنـه ټکنـه۔(۲) ډول ږغونه

**درمبووُنکے** :۔ (دْ+رَ+مْ+ب+وُو+نْ+کےَ) [پ، فـاع، مـذ ، وا ، ج : درمبووُنکي،مؤ: درمبووُنکې](۱) درزووُنکے ،وهونکے ټکووُنکے۔ (۲) ډول ږغووُنکے ۔

**درمبهار** :۔ (دْ+رْ+مْ+ب+ها+رْ)[پ، اِس، صو ،مذ] و - درمبا ۔

**درمبے** :۔ (دْ+رَ+مْ+بےَ)، [پ، اِس، صو، مذ] و - درمبا ۔

**درمبېدل** :۔ (دْ+رَ+مْ+بې+د+لْ) ، [پ ، مـص لا] (۱)درزېـدل ،وهلے ټکلے کېـدل ۔ (۲) د ډول ږغېدل ۔

**درمبېــدلے** :۔ (دْ+رَ+مْ+بـــې+د+لےَ) [پ، مــف ،مــذ ، وا ، ج : درمبــدلي ،مــؤ : درمبېدلې]

(۱) درزېدلے، وهلے ټکولے۔(۲) ډول ږغېدلے ۔

**درمبېدنه** :۔ (دْ+رَ+مْ+بې+د+نهَ) [پ ، حمص] (۱) درمبېـدۀ، درزېـدۀ وهلے ټکـولے کېدۀ۔(۲) ډول ږغېدنه ۔

**درمبېدُونکے** :۔(دْ+رَ+مْ+بې+دُو+نْ+کےَ ) [پ ،مـف ،مـذ ، وا ، ج : درمبېـدُونکي، مـؤ : درمبېـدُنکې](۱) درزېـدُونکے ،وهلـے ټکـولے کېـدوُنکے۔(۲) ډول ږغېدُونکے

**درمبېدۀ** :۔ (دْ+رَ+مْ+بې+ده ٗ)، [پ ، حمص] و - درمبېدنه ۔

**دُرمـټ** :۔(دُ+رْ+مَ+ټْ)[پ ،اِس ،مـذ ، وا ، ج : دُرمټوُنـه ،دُرمټـان ]هغـه داوسـپنې درنـه پلنـه څپېـړه چې د لرګي لاسکے پکښې لګېـدلے وي او زمکـه پـرې دربلے شي ۔

**دُرمرجان** :۔ (دُ+رْ+مَ+رْ+جا+نْ)، [فا ، اِس، مو، مذ ، ج ] ملغلرې ۔

کـــه دې غاښ وشُونډې ګورم دُرمرجان دي

کـــه دې مـــخ وتـــه نـــظر کـــړم مـــهـــه خوشحال)

**درمغول** :۔(د+رْ+مَ+غو+لْ)[اَف : پ (قاموس) ص]درغول برغول ،ګډ وډ۔

**ـــــکول** :۔ (اَف ) اِص، درغول برغول کول، غ=ګډ وډ کول ۔

**ـــــ کېدل** :۔ (اَف) اَص ، درغول برغول کېدل،ګډ وډ کېدل ۔

**درم کښ** :۔ (دْ+مْ+کَ+شْ+يــــاخْ)، [اَف : پ (قـــاموس) اِس، مـــذ ، وا ، ج : درم کښُونه] د کتې ګنډلو ستن ۔

**دُرمل** :۔ (دُ+رْ+م+لْ) ، [پ ،ص] (۱) نيم پخته مېوه، پخېدلوته نزدې۔(۲) زړکے، ژړُوکے ،هغه هلک چې شونډه ئې شنه شي ۔

**دُرمل**:۔(دُ+رْ+م+لْ)[پ ،لاحقه] د دارُو سره وئېلے شي لکه دارُو دُرمل۔

**دُرملتوب**:۔(دُ+رْ+مَ+لْ+تو+بْ)[پ ، اِس ] د دارُو دُرملو کار، طبيبي۔

**دُرملتون** :۔ (دُ+رْ+مَ+لْ+تو+نْ) ،[پ، اِس ،مذ ، وا ،ج :درملتُونونه] دواخانه، شفا خانه، هسپتال ۔

**درملک**:۔(دَ+رْ+مَ+لَ+کْ)[پ، اِس، معرفه ، مذ] د کوهاټ په ضلع کښې د خټکو د يو کلي نُوم ۔

**دُرمــل ګــر** :۔ (دُ+رْ+مَ+لْ+ګَ+رْ)، [پ، اس، مــذ ،وا ، ج : درملګــران (مــؤ، وا : دُرملګره،ج: دُرملګرې] د اُرو دُرمل کووُنکے ،طبيب دُرملے، دُرمليار ۔

**دُرملے** :۔(دُ+رْ+مَ+لے)[پ ،اِس، مذ ،وا ، ج : دُمليان ،مؤ : دُرملۍ]و - دُرمل ګر ۔

**دُرمليار** :۔ (دُ+رْ+مَ+لْ+يا+رْ)، [پ ،اِس ،مذ ] و - دُرمل ګر ۔

**درمـن** :۔ (دَ+رْ+مَ+نْ)، [پ اِس، مـذ، وا ، ج : درمنُونـه] درمنـد ، هغـه ډاګـه چې فصل پکښې صفا کولے شي۔

مــا وې ډېر اٰرمان به کا په وخت د درمن

چې د کار په موسم خوزي زميندار سست (علي خان)

**درمند** :۔ (دَ+رْ+مَ+نْ+دْ)، [پ، اِس، مذ ،وا ، ج : درمندُونه ،درمندان]و - درمن

**درمنده** :۔ (د+رْ+م+نْ+دَه)، [اَف : پ (قاموس) اِس] درنده ، سرتړونے،سرپيچک

**درمنــدے** :۔ (د+رْ+م+نْ+دَ ے)، [اَف : پ (قــاموس) ،اِس ،مــذ]راشــتلے ،پــټ سُوړے ، ډاګ، لاس لاندې ۔

**درمولے** :۔ (د+رْ+مو+لَے)، [اَف : پ (قـاموس) اِس، مذ، وا ، ج : درمـولي]نـاوے،د درمنـد پـه مېـنځ کښـې ښـخ کـړے لـرګے چې د غوايـانو غوبـل تـرې ګېرچاپېر ګرځي، درلتکۍ ۔

**دُرمه** :۔ (دُ+رْ+مَه) [پ، اِس، مؤ ،وا ، ج : دُرمې](۱) پخـه ۔(۲) د ټوپـک صفاکولو سيخ۔(۳) د ټوپک نالۍ ۔

**تشه دُرمه** :۔اِص ،هغه ټوپک چې ډز نۀ کوي، بېکاره ټوپک ۔

**درمه** :۔ (دَ+رْ+مَه)، [پ (بخ) اِس ،مؤ ،وا ، ج : درمـې] د يـوې دال هغـه حصـه چې جغ ورسره تړلے شي ۔

**درناوے** :۔ (دْ+ر+نا+وَ ے)، [پ ، ص] دروند والے، عزت ۔

**ـــــ ورکول** :۔اِص ،عزت ورکول ۔

**په درناوي کښې کېدل** :۔اِص، عزت او شان شوکت موندل ۔

**درنته** :۔ (دَ+رَ+نْ+تَه)، [پ، اِس، مؤ، وا ، ج : درنتې] غُوړاسکے ،سنته۔

**درنجکي** :۔ (دْ+رَ+نْ+جَ+کې)، [پ ،اِس ،مؤ] ټوپُونه ۔

**ـــــ وهل** :۔اِص، ټوپُونه وهل ۔

**درنجــے** :۔ (د+رَ+نْ+جَے)، [پ ،اِس، صـو] دا ټکـے هلکـان هغـه وخت وائـي چې دباران غوښتلو د پاره په کورُونو ګرځي او دانې غونډوي ۔

**درنـد**:۔(دْ+ر+نْ+دْ) [اَف : پ (قـاموس) ،اِس، مـذ](۱) درمـن، درنـد (۲) يـوه غرئيـزه ونه ۔

**درند سترګے** :۔ (دْ+رَ+نْ+دْ+سْ+تَ+رْ+ګَے)، [پ، اِس ، ص] هغـه څوک چې خلق په نظر کو ي ،بد سترګے، بد نظرے ۔

**درندول** :۔ (دْ+رَ+نْ+دَ+و+لْ) ، [اَف : پ (قـاموس) مـص مـت](۱) درنـول ،څۀ څيـز په وزن کښې زياتول۔(۲) چاته عزت ورکول۔

**درندونه** :۔ (دْ+رَ+نْ+د+و+نه) ، [اَف : پ (قاموس) حمص](۱) درنونـه ،څۀ څيـز پـه وزن کښې زياتونه۔(۲) چاته عزت ورکونه ۔

**درنــدوُنکے** :۔ (دْ+رَ+نْ+دَ+وُو+نْ+کَے) ، [اَف : پ (قـاموس) فـاع، مـذ ،وا ج : درندورُنکي، مؤ : درندُوونکې] (۱) درنووُنکے ،څۀ څيـز پـه وزن کښـې

زياتوونکے۔(۲) چاته عزت ورکوونکے۔

**دُرنـده** :۔(دُ+رَ+نْ+ده)[اَف : پ (قـاموس) اِس، مـؤ، وا، ج : دُرنـدې] ورپـدُونکے ، وريځ۔

**درندے** :۔(دْ+ر+نْ+دَ+ے)، [اَف : پ (قاموس) اِس] د بزو يو مرض څې لرمُون ئې شين شي۔

**درندېدل** :۔(دْ+ر+نْ+دې+د+لْ) ، [اَف : پ (قـاموس) مـص لا] (۱) درنېـدل ،وزن زياتېدل۔ (۲) عزت مُوندل۔

**درندېدنه** :۔(دْ+رَ+نْ+دې+د+نَه)، [اَف : پ (قاموس) حمص] (۱) درنېدنه، وزن زياتېدنه(۲) عزت مُوندنه،درندېدۀ۔

**درندېدُونکے** :۔(دْ+رَ+نْ+دې+دُو+نْ+کَے) ،[اَف : پ (قـاموس) مف، مذ ، وا ، ج : درندېـــدُونکي ، مـــؤ : درندېـــدُونکې](۱) درنېـــدُونکے ،پـــه وزن زياتېدُونکے۔ (۲) عزت موندُونکے۔

**درندېدۀ**:۔(دْ+رَ+نْ+دې+ده)[اَف :پ (قاموس) حمص]و - درندېدنه۔

**درننبت** :۔(دْ+ر+نْ+ش+ياخْ+تْ)، اپ ، ص] درُوندوالے، عزت۔

چې د عشق د سپـکاوي درننبت مې ولید
بـــې پـــروا شـــوم د نـــاصح لـــه ملامته (حميد)

**درنگ** :۔(دْ+رَ+نْ+ګْ) [اپ، اس، مذ ،وا، ج : درنګُونه] (۱) لږ وخت ،لږ ساعت، ګړی۔

که رحمٰن د هغه تلل يو وصال مُومي
تېربه نۀ کا په دا دور کښې يو درنګ
(۲) کانړ، کان، د معدنياتو د ذخيرې غار۔

**ـــ په درنگ** :۔اص، ساعت په ساعت، ګړی په ګړی۔

**ـــ ساعت** :۔اص، لږ ساعت، لږ وخت۔

**درنگ** :۔(دْ+ر+نْ+ګْ) [اَف :۔پ (قاموس)اِس ، صو] د رباب يا دغـه شان دبـل ساز اواز

**درنگول** :۔(دْ+ر+نْ+ګ+ولْ)، [اَف : پ (قـاموس) مص مت] ربـاب يـا داسې بـل ساز ږغول۔

**درنگولے** :۔(دْ+ر+نْ+ګ+و+لَے)، [اَف : پ (قـاموس) مف، مذ ، وا، ج : درنګولي مؤ : درنګولې] رباب يا داسې بل ساز ږغولے۔

**درنگونه** :۔(دْ+ر+نْ+ګ+و+نهَ)[اَف : پ (قـاموس) حمص] ربـاب يـا داسې بـل ساز ږغوَنه۔

**درنگووُنکے** :۔(دْ+ر+نْ+ګ+وُو+نْ+کَے)، [اَف:پ (قـاموس) اِس، فـاع، مذ، وا،ج : درنګووُنکي، مؤ : درنګووُنکې] رباب يا داسې بل ساز ږغوؤُنکے۔

**درنگه** :۔(دْ+رَ+نْ+ګَه)، [اپ، اس، مؤ، وا، ج:درنګې] (۱) مُرداره۔

ازوقـــه د عـقابې سترګو خوناب کړه
نۀ بنائي لکه تپوس چې درنګه خورې (غلام سرورخان مومند)

**ـــ جوړول** :۔اص، لانجه جوړول ،تنازعه پيدا کول۔

**درنگهار** :۔(دْ+رَ+نْ+ګَ+ها+رْ)، [اف : (قاموس) اِس، صو] درنګے ،د رباب يـا بـل ساز پرله پسې اواز۔

**درنگے** :۔(دْ+ر+نْ+ګَے)[اَف :پ (قاموس) اِس، ص] و - درنګهار۔

**درنگېدل**:۔(دْ+ر+نْ+ګې+د+لْ)[اَف : پ (قـاموس) مص لا] د رباب يا د بـل ساز ټنګېدل۔

**درنگېـــدلے** :۔(دْ+ر+نْ+ګـــې+د+لے) [اَف : پ قـــاموس) مـــف، مـــذ ، وا ،ج : درنګېدلي ، مؤ : درنګېدلې] رباب يا بل ساز ټنګېدلے ۔

**درنگېدنه** :۔(دْ+ر+نْ+ګې+د+نَه)، [اَف : پ (قاموس) حمص] د رباب يا د بل ساز تنګېدنه۔

**درنگېـدُونکے** :۔(دْ+ر+نْ+ګې+دُو+نْ+کَے)، [اَف : پ (قـاموس) مف، مذ ،وا ، ج : درنګېدُونکي، مؤ : درنګېدُونکې] رباب يا بل ساز ټنګېدُوونکے۔

**درانواله** :۔(دْ+ر+نْ+وا+لَه)، [اَف : پ (قاموس) اس ،مؤ] درُوندوالے ،درننبت۔

**درنــول** :۔(دْ+ر+نَ+و+ل) [اپ، مــص مــت] (۱) درُونـد کــول، بــوج زيــاتول ، درُوندول۔ (۲) عزت ورکول۔

**په چا ځان درنول** :۔اص، دچا په نظر کښې خپـل عـزت زيـاتول ،چاتـه ځـان لـوئې بلل

**ځان ته پېټے درنول** :۔اص ،خپل ګناهُونه زياتول۔

**غاړه درنول** :۔اص، خپل ځان ګناهګارول۔

**درنونـگ** :۔(دْ+ر+نَ+وَ+نْ+ګ) [اَف : پ (قـاموس) ،حمـص] (۱) درنونـه، بـوج زياتونه ،درُوندکونه ،دروندونه(۲) عزت زياتونه(۳) اُودرونه، لکونه۔

**درنونه** :۔(دْ+ر+نَ+و+نهَ)، [اپ ،حمص ] و - درنونګ۔

**درنوُونکے** :۔(دْ+ر+نَ+وُو+نْ+کَے)، اپ، فـاع، مـذ ، وا ، ج : درنـوونکي، مـؤ : درنووُنکې](۱) درُوند کووُنکے، بوج زيـاتووُنکے ،درونـدوُنکے۔(۲) عـزت زياتوونکے ،عزت ورکووُنکے۔

**درنه** :۔(دْ+رَ+نهَ) [اپ، ص ،مؤ ،وا ، ج : درنې] (۱) په وزن کښې زياته (۲) سنجيده (۳) د پېريانو نه متاثره ۔

**ـــ خبره** :۔اص ،پخه خبره، سنجيده خبره، ګوتلې خبره۔

**په درنه سترګه کتل** :۔اص، عزت کول۔

**په درنه لاره تلل** :۔اص، د پېريانو په لاره تلل۔

**درنې وهل** :۔اص، بلا وهل، پېريانو وهل۔

**درنه** :۔(دَ+رْ+نهَ)، [اپ، حرف] د تانه، له تا څخۀ۔

يو لاړ خطا درنـــه سبق واخستو
پند په رښتيا درنه احمق واخستو (پريشان خټک)

**دُرنه** :۔(دُ+رْ+نَه)،[اَف : پ (قاموس) اس ،مؤ، وا] دورينه، دره۔

**دُرنه مار** :۔(دُرنه+ما+رْ)،[اَف : پ (قاموس) اس، ص ،مذ] جلات ، جلاد۔

**درنېــدل**:۔(دْ+ر+نـې+د+لْ) [اپ، مــص لا (۱) پــه وزن زياتېــدل، درُوند ېــدل۔ (۲) عزت زياتېدل۔

**بيعه درنېدل** :۔اص، قيمت زياتېدل۔

**پښه درنېدل** :۔اص ،اُميد پيدا کېدل، حمل کېدل۔

**جېب درنېدل** :۔اص ،زياتې پيسې لاس ته راتلل۔

**سترګې درنېدل** :۔اص، خوب راتلل۔

**سردرنېدل** :۔اص ،(۱) سرخوږېدل۔(۲) ستړے کېدل۔

**طبيعت درنېدل** :۔اص، (۱) طبيعت ناسازه کېدل، بيماره کېدل۔(۳) خفه کېدل۔

**درنېــدنګ**:۔(دْ+ر+نــې+دَ+نْ+ګْ) [اَف : پ (قــاموس) حمــص](۱) درنېدنــه ، درُوندېدۀ، درنېدۀ، دروندېدنه، په وزن زياتېدنه(۲) عزت زياتېدنه۔

**درنېدنه** :۔(دْ+ر+نې+د+نهَ)، [اپ ، حمص ]و - درنېدنګ۔

**درنېدُونکے** :۔(دْ+ر+نې+دُو+نْ+کَے) ، [اپ، مف، مذ ، وا ، ج : درنېدُونکي،مؤ: درنېــدُونکې] (۱) پــه وزن زياتېــدُونکے ،درونديــدونکے (۲) عــزت زياتېدُونکے۔

**درنېدۀ** :۔(دْ+ر+نې+ده)[اپ ، حمص] و- درنېدنګ۔

**دروازګی** :۔(دَ+رْ+وا+ز+ګ+ی)[اپ، اس تصغير، مؤ ]وړه شان دروازه۔

**دروازه**:۔(دَ+رْ+وا+زَه)[اف، اس، مؤ، وا، ج : دروازې] ور، تمبه ،پاټک۔

چې مجنون غونډې په عشق کښې څوک صادق شي
د لـــيـــلـى پـــــه دروازه کښـــې دربــــــان نشته (رحمان)

**ـــ تړل** :۔اص، (۱) دروازه بندول۔(۲) مخالفت کول۔

**ـــ ټکول** :۔اص، ورټکول، تمبه ډزول۔

**ـــ خلاصول** :۔اص، ورلرې کول، تمبه بېرته کول۔

**درواغ** :- (دَ+رْ+وا+غْ)، [پ، اس ،مذ] دروغ، غلطه خبره ،درویغ.

**ـــ کول**:- اص ،دروغ وئیل ، غلطه خبره کول، وعده نه پُوره کول،درواغ وئیل

**ـــ وئیل** :- اص، و - درواغ کول -

**درواغجـــن** :- (دَ+رْ+وا+غْ+جَ+نْ) ، [پ، اس ،ص ،مـذ (مؤ، وا : درواغجنــه ،ج : درواغجنې] (۱) دروغجـڼ، غلطـه خبـره کـوُونکـے ،دروغـژن-(۲) وعـده خلاف، درویغذن -

**درواغجني** :- (دَ+رْ+وا+غْ+جَ+ني)، [پ ،اس، مؤ] (۱) دروغجني ، دروغژني- (۲) وعده خلافي،منافقي -

**ـــ کول** :- اص ،دروغ کول، وعده خلافي کول -

**دروان** :- (دَ+رْ+وا+نْ)، [پ ،فـا : دربـان، اس، مـذ ، وا ، ج : دروانـان] د دروازې څوکیدار، دروانچي -

**دروانچي** :- (دَ+رْ+وا+نْ+چي)، [پ، اس ،مذ ،وا ، ج : دروینچیان] و - دروان -

**درُوب** :- (دْ+رُو+بْ)، [پ، لاحقـــه] د دیـــوال د غورځیـــدلویا د دوو څیزونُـــو د جنګیـدو اواز، دا ټکـےد درب سره د لاحقې پـه طـور استعمالیږي لکـه :درب درُوب -

**دروبڼ** :- (دْ+رو+بَ+ڼْ)  [اَف : پ (قاموس) اس ،مذ)]مېلمستیا زخمت -

**ـــ کول** :- (اَف)اص ،د مېلمستیا زحمت کول -

**درُود** :- (دَ+رُو+دْ)، [فـا ، اس ،مـذ ، وا ، ج : درُودُونـه] د حضـرت محمـد مصطفٰی صلي الله علیه وسلم ثنا صفت -

نـور څـۀ نـۀ سـتائي حمیـد بـې ښـکلي مخـه
روا نــــۀ دے بــــې نبــــي پــــه چــــا درود

**درودلیږل** :- اص ،د حضرت محمـد مصطفٰی صلي الله علیـه وسلم ثنا صـفت کول، درُود وئیل -

**وئیل** :- اص، و - درُود لیږل -

**درود ګر** :- (دْ+رُو+دْ+ګَ+رْ)[اَف :پ (قاموس)اس، مذ] ژرنده ګرے -

**درور** :- (دْ+رو+رْ)، [اَف: پ (قـــاموس)، اس ،مـــؤ] نتـــدرور، نتدیار، نـــدرور، اندرور،د خاوند خور -

**درونړ** :- (د+رْ+وَ++ڼْ)، [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ] درورنګ ،هغـه بُوټـے چې د څانګو نه ئې جاروګان جوړیږي -

**دروړنګ** :-(دَ+ر+وَه+ړ+َنْ+ګْ)[اَف : پ (قاموس) اس، مذ]و - درُوب-

**درُوز** :- (دْ+رُو+زْ)، [پ ،اس صو،مذ] و-درُوب-

**درُوزاره**:-(دْ+رُو+زا+رَه)[پ (ســو ، اس، مــؤ، وا ، ج : درُوزارے]درُوزه، د غنمـو تیلے -

**درُوزګر** :-(دْ+رُو+زْ+ګَ+رْ)[پ ، (سو) اس، ص، مذ] ترکاڼ، پش -

**درُوزه**:-(دْ+رُو+زَه)، [پ، اس، مؤ، دا ، ج : درُوزې] د غنمویا د اُوربشو تیلے -

**ـــ رغول**:-اص، درورُزه وهل ،د درُوزې شپیلۍ وهل ،په درُوزه ساز رغول -

**ـــ وهل** :- اص، و - درُوزه رغول -

**په درُوزه ساز رغول** :- اص، و - درُوزه رغول -

**دروږ** :- (دْ+رْ+وَ+ژْ+ګْ) ، [پ ،اس، مــــذ] (۱) ســـورے، درز، نخښنــــه-(۲) د خاروي غوږ لرِ شان پرې کول-(۳) د منبنتې اونذر علامه -

**ـــ کول** :- اص ،(۱) سُورے کول،نخښنـه کـول-(۲) د خاروي غوږ لرِ شان پـرې کول-(۳) د منبنتې اونذر علامه کول -

**ـــ کېدل** :- اص ،(۱) سُورے کېدل ،نخښنه کېـدل-(۲) د خاروي غـوږ لرِ شـان پرې کېدل-(۲) د منبنتې او نذر علامه کېدل -

**دروږے** :- (دَ+رْ+وَ+ژَے یا ګَےْ)  [پ، ص، مذ] (۱) د نذریا منبنـتې څنـاور ، درغوږے-(۲) هغه هلک چې د منبنتې والی ئې په غوږ کښې وي -

**دروش** :- (دَ+ر+و+شْ)، [اس معرفه] د چترال په ضلع کښې یو مشهور کلے -

**دروغ** :- (دَ+رو+غْ)، [پ، اس ،مذ] و - دروغ -

ستا ومخ ته که څوک شمس وقمر وائي
دروغ نۀ دے په رښتیا دے دا حدیث (رحمٰن)

**ـــ تپل** :- اص، په چا دروغ وریوري کول، دروغ تړل -

**ـــ تړل** :- اص، و - دروغ تپل -

**ـــ جوړول** :- اص ،د دروغو قیصه د څانه جوړول -

**ـــ کول** :- اص، دروغ وئیل -

چې د پیلار سره دروغ نفاق خلاف کا
د نور چا سره به څرنګه زړۀ صاف کا (خوشحال)

**ـــ کېدل** :- اص ،څۀ خبره غلطه ثابتېدل -

**ـــ ناروا**:-اص،بېخي دروغ،زیات دروغ-

**ـــ وئیل**:-اص،و-دروغ کول-

وے مې څۀ کړم چې هر څوک په ما مئېن شي
وے ئې مه وایـــه دروغ مه کړه جنجال (خوشحال)

**په وروغو**:-اص،په دروغه،چې په رښتیا نۀوي،په غلطه-

**په دروغه**:-اص،و-په دروغو-

**د دروغو**:-اص،د دروغه،چې په رښتیا نۀوي،د قصده-

**د دروغه**:-اص،و-د دروغو-

**دروغجـــن**:-(دَ+رو+غْ+جَ+نْ)[پ،اس ،مذ ،(مؤ،وا :دروغجنــه،ج:دروغجنې)]و- درواغجن-

**دروغـــژن**:-(دَ+رو+غْ+ژَیـــاجَ+نْ)،[پ،اس ،مذ(مؤ،وا :دروغژنــه،مؤ:دروغژنې] و-درواغجن-

تۀ په عشق کښې ما هـالـــۀ دروغژن بوله
که یو بل هم هسې ما غوندې ملنګ کړې (رحمان)

**ـــ کول** :- اص، دروغژنول، دروغژن ثابتول -

ما ستا خوي دے وهرچا وته ستائیلے
چیرې نۀ وي دروغژن مې تر هر چا کړې (رحمٰن)

**ـــ کېدل** :- اص ،دروغژنېدل،دروغژن ثابتېدل -

**دروغ رښـتیا** :- (د+رو+غْ+ر+شْ+ا+خْ+ت+یـا) ، [پ، اس، مرکـب] عبث خبـرې، ګډې وډې خبرې ،بې اعتباره خبرې -

**درغوږے**:- (دَ+رْ+غْ+و+ژَے یاګَے)[پ، اس ،ص، مذ] و - دروږے -

**درُوګه**:- (دْ+رُو+ګَه)[اَف : پ (قاموس) ص ،مؤ] دبدبه ،رُعب، ټنګ، اوازه -

**دروګه**:- (دْ+رو+ګَه)[اَف : پ (قاموس) اس ،مؤ] بندوبست، انتظام -

**درول** :- (د+رَ+و+لْ) [پ، مص مت] اُودرول، ولاړول،لکول، ښخول-

**درولے** :- (د+رَ+و+لَےَ ، [پ، مف، مذ ،وا ، ج : درولي، مؤ : درولې)اُدرولے، ولاړ کړے ،لک کړے، ښخ کړے -

**درُوم** :- (دْ+رُو+مْ)، [اَف : پ (قاموس) ،اس ،صو ،مذ] د توپې وغېره اواز -

**درُومل** :- (دْ+رُو+م+لْ)، [اَف : پ (قاموس، مص مت] تلل-

**درُوملے** :- (دْ+رُو+م+لَےَ)، [اَف : پ (قـاموس) مـف، مـذ ، وا ، ج : دروملي ،مـؤ : دروملې] تللے -

**درُومنه** :- (دْ+رُو+م+نَه)، [اَف : پ (قاموس) حمص] تلنه -

**درُومُونکـــے** :- (دْ+رُو+مُــــو+نْ+کے)، [اَف : پ (قـــاموس) اس ،مـــذ ، وا ، ج :درُومُونکي، مؤ: درومُونکې] ،تلُونکے-

**درون**:- (د+رْ+وَ+نْ)، [اَف:پ (قاموس)اس،مـذ]د نڅـو د کهیـو څنګـل، دروڼ، درُونې

**درُون** :- (دَ+رُو+نْ) ، [اَف : (قاموس) اس، مذ)]دننه ،اندرُون، زړۀ -

سرے بویه چې درُون بېرون ئې يو وي

نـهٔ هـغه چـې بهرون زروي درُون لاګ (رحمٰن)

**درُوند** :۔ (دْ+رُو+نْ+دْ)، پ، ص، مذ، وا، ج : درانهٔ ،(مؤ ،وا : درنه، ج : درنې]

(۱) په وزن کښې زيات ۔

چې هوس کړې د ګُلرخ د پتانهٔ

په سر مه تړه دغه پيتي درانه (حميد)

(۲) عزتمن

شـېـر اظـم خـان تېره کړه

درُوند شريف خان تېره کړه (پُردل ختک)

**درُونـد پوروتلـل** :۔ (ب، خ) اص ،غـوړي زيـات پـر ي اچـول، پـه وره ډوډۍ زيـات غوړي اچول۔

**ـــ خُوبه** :۔ اص ،بنهٔ خوئي لرُونکے ۔

**ـــ سړے** :۔ اص ،عزتمن بنيادم ۔

**ـــ کښېناستل** :۔ اص ،په عزت کښېناستل ۔

**ـــ ولاړېدل** :۔ اص، په عزت پاځېدل ۔

**درُونـدوالے** :۔ (دَ+رُو+نْ+دْ+وا+لےَ)[پ، اس، مـذ] (۱) د وزن زيـاتوالے (۲) درونـد خوئي۔

**درُوندول** :۔ (دْ+رُو+نْ+دَ+و+لْ) اپ ،مص مت] و - درنول ۔

**درُوندونه** :۔ (دْ+رُو+نْ+دَ+وُو+نَه) [پ ، حمص] و - درنونګ ۔

**دروندوُونکے** :۔ (دْ+رُو+نْ+دَ+وُو+نْ+کےَ ، [پ ،فـاع، مـذ ، وا ، ج : درونـدوُونکي، مؤ : درونِدوُونکې] درنوُونکے ۔

**درُونډېدل** :۔ (دْ+رُو+نْ+دي+د+لْ)، [پ ،مص لا] و - درنېدل ۔

**درُونډېدنه** :۔ (دْ+رُو+نْ+دي+د+نَه)، [پ ، حمص] و - درنېدنګ ۔

**درُونډېــــدُونکے** :۔ (دْ+رُو+نْ+دي+دُو+نْ+کــــےَ) [پ، مـــف، مـــذ ، وا ، ج : د رُونډېدُونکي، مؤ : درونډېدُونکې] و - درنېدُونکے ۔

**درُونډېدهٔ** :۔ (دْ+رُو+نْ+دي+ده')، [پ، حمص] و - درنېدنګ ۔

**درون** :۔ (د+رْ+وَ+نْ) ،[اَف : پ (قاموس) اس، مذ] و - درون ۔

**دروُنې** :۔ (دْ+رُو+نې) ،[اَف : پ (قاموس) ،اس، مذ]و - درون ۔

**دروُونکـے** :۔ (دْ+رَ+وُو+نْ+کـےَ ، [پ، فَـاع، مـذ ، وا ، ج : دروُونکـي ،مـؤ : دروُونکې]اُودروُونکے، ولاړوُونکے، لکوُونکے ۔

**دروه**:۔ (دْ+رو+ه') [پ ،اس ،مؤ] (۱) دوکه، چل،ټګي۔(۲) فکر، اندېښنه، يره ۔

په خپل زوئي او ورور باور نشته خوشحاله

غـافـل مـه شـه د جهان له مکره دروه

**ـــ خوړل** :۔ اص، (۱) دوکه کېدل۔(۲) يرېدل، ترسېدل ۔

**دروه ورکول** :۔ اص ،دوکه ورکول، ټکل ۔

**دروه** :۔ (د+رْ+وَه) ، [اَف : پ (قاموس) ص ] سمدستي، في الحال ۔

**دروهل** :۔ (د+رْ+وَ+ه+لْ) [پ ،مص مت] (۱) منډه کول، په منډه اخستل۔

(۲) دروهول، دوکه کول، دروهېيل ۔

پــه وعــده ئـې د وفا په جفا چُور کړم

دروهلم جو فروش ګندم نمائے دوست (حميد)

**دروهلے**:۔ (دْ+رو+ه+لےَ) [پ، مف، مذ ،وا، ج :دروهلي، مؤ : دروهلې] ټګ، دوکه باز

**دروهنه** :۔ (دْ+رو+ه+نَه) ، [پ، حمص)]دوکه کونه، ټګينه ۔

**دروهول** :۔ (دْ+رو+هَ+و+لْ)، [پ ،مص مت] و - دروهل ۔

**دروهوُونکے** :۔ (دْ+رو+هَ+وُو+نْ+کےَ) ،[پ، فـاع، مـذ ، وا ، ج : دروهوُونکي،مـؤ : درهوونکې] دوکه کووُنکے، ټکوُنکے ۔

**دروهه** :۔ (دْ+رو+هَه) [پ ،اس، ص] چلولي، دوکه باز، ټګ ،مکار ۔

**دروهېـدل** :۔ (دْ+رو+هـې+د+لْ) ،[پ ،مـص لا] (۱) دوکـه خـوړلے کېـدل،ټګلے کېدل

څهٔ غلط دے پوهېدلے دروهېدلے

دا غــره تــلـلـې په اصل پــه نسب (حميد)

(۲) يرېدل، ډرېدل ۔

**دروهېــدلے** :۔ (دْ+رو+هــې+د+لےَ [پ، مـف ،مـذ ،وا ،ج : دروهېـدلي، مـؤ: دروهېلې] (۱) دوکه خوړے شوے، ټګېدلے ۔(۲) يرېدلے، ډرېدلے ۔

**دروهېدنګ** :۔ (دْ+رو+هې+دَ+نْ+ګْ ،[اَف : پ (قـاموس) حمص] (۱) دروهېدنه، دوکه خوړلے کېدنه، ټګلے کېدنه(۲) يرېدنه، ډرېدنه ۔

**دروهېدنه** :۔ (دْ+رو+هې+د+نَه) ، [پ ،حمص] و - دروهېدنګ ۔

**دروهېـدُونکے** :۔ (دْ+رو+هې+دُو+نْ+کےَ [پ ،مف، مذ ، وا ، ج : دروهېـدُونکي، مـؤ : دروهېـدُونکې] (۱) دوکه خوړونکے، ټګېـدُونکے۔(۲) يرېـدُونکے، ډرېدوُنکے ۔

**دروهېيل** :۔ (دْ+رو+هې+يْ+لْ ، [اَف پ (قاموس) مص مت)]و - دروهل ۔

**دروے** :۔ (دَ+رْ+وے) ، [پ، اس، مذ، وا، ج : دروي]و - کرک ،چجکے، نچه

**دروېزګر** :۔ (دَ+رْ+وي+زْ+ګَ+رْ)، [پ، فا : دريوزه ګر، اس، ص ،مذ] خېرمار، خېر غوښتُونکے، ګداګر، فقير ۔

د بوذر او د سلمان ئې دروېزګر يم

تل د دوي په محبت دے زما ژواک (خوشحال)

**دروېــزه** :۔ (دَ+رْ+وي+زَه)، [پ،فـا : دريــوزه، اس، مـؤ ،وا، ج : دروېــزې] (۱) سوال، خېر، ګدا ۔

ملنګان ئې د دربـار دروېزه مُومي

ما هم څکه ځان د يار د ور ملنګ کړ (خوشحال)

(۲) اخون دروېزه بابا چې مخزن او داسې نور کتابونه ئې په پښتو کښې ليکلي دي۔

**ـــ غوښتل** :۔ اص ،خېر غوښتل، دروېزه کول ۔

**ـــ کول** :۔ اص ،و - دروېزه غوښتل ۔

پــه درګاه ئې دروېزه کانـدي دحُسن

کنډولے په لاس سپوږمۍ ئې هم اٰفتاب (رحمٰن)

**دروېش**:۔ (دَ+رْ+وي+شْ) [اَف ، اس ،مـذ ،وا، ج : دروېشـان] فقير، دمعرفت خاوند ،ملنګ ۔

د دروېش بــخـره خــوشي غم د هغو دے

چې په شمار د زروناست دي چون اوچند کا (خوشحال)

**درويشـت**:۔ (دَ+رْ+وي+شْ+تْ) [پ، اس ،عـدد] دري د پاسه شـل، دري بانـدې شل

درويشت زره شهيدان په ازادۍ شُو

د وطن ننګ کښې قربان په ازادۍ شُو (محمد هاشم زماني)

**درويشـــتم** :۔ (دَ+رْ+وي+شْ+تَ+مْ)[پ، ص، مـــذ ، (مـــؤ ،وا : درويشـــتمه، ج: درويشتمې] دري د پاسه شلم ۔

**درويشـــتمه** :۔ (دَ+رْ+وي+شْ+ت+مَـــه) [پ، اس ،مـــؤ]د روژو د مياشـــتې درويشتمه شپه چې ملايان پکښې سورتونه وائي، د سورتُونو شپه ۔

**درويشته** :۔ (د+رْ+وي+شْ+تَه ) ، [اَف، پ (قاموس) اس ،مؤ]پُوره، بُوس پروړه۔

**ـــ کول** :۔ (اَف) اص، بُوس کول، پُوره‌مېده کول ۔

**ـــ کېدل** :۔ (اَف) اص ،بُوس کېدل، پُوره مېده کېدل ۔

**درويغ** :۔ (دَ+رْ+وي+غْ) ، [پ (خ) اس ،مذ] و - درواغ۔

چــې دې شـهٔ لــه خويـه بُويــه خبـردار شـوم

لــه خوشــحال سـره يــاري کړېـــه درويغـــه

**درويغـزن** :ـ (دَ+رْ+وي+غْ+زَ+ن) ، [پ (خ) اِس، مــذ ، (مــؤ،وا ،درويغذنــه ،ج : درويغزنې] و-درواغجن-

**دروي وال** :ـ (دَ+رْ+وي+وا+لْ) ، [پ، اِس، مــذ ، ج : دروي والان (مــؤ، وا : دروي واله ، ج : دروي والې] کرک خرڅوُونکے ـ

**دره**:ـ (د+رَه) [اس، مؤ ،وا، ج : درې] د دوؤ غرونو په مېنځ کښې تنګه لار ـ

هـغـه د مـيـنـې مـقـبـره دارغــوانــو دره

چې د سپرلي مازيګري پکښې جُوتې خورلي (پريشان ختک)

**دُره** :ـ (دُ+رْ+رَه) [ع، اِس، مؤ، وا ، ج : دُرې] (۱) د ټانګې يا د ربړې د دؤو پهيــو په مېنځ کښې غټه اوسپنه ـ

پــه تــنـدي د محتسب دُره کا ماته

چې پرې راشي دُره دار د تورو زلفو (رحمٰن)

**دُرې خوړل**:ـ اِص، په دُرو وهل خوړل، په دُرو وهلے کېدل ،کوړې خوړل ـ

**دُرې لګول**:ـ اِص، په دُرو وهل ،په کوړو وهل ،دُرې ورکول ،دُرې وهل ـ

**دُرې ورکول** :ـ اِص، و - دُرې لګول ـ

**درې وهل** :ـ اِص، و - دُرې لګول ـ

**دره دار** :ـ (دُ+رْ+رَه+دا+رْ) ، [اپ، اِس ص، مــذ] (۱) دُره لــرُونکے ـ(۲) دُرې يــا کوړې لګوُونکے ـ

**درهار** :ـ (د+ر+ها+رْ) [اَف : پ (قاموس) اِس ،مذ] د اوو د بلبدلو پرله پسې اواز

**درهدکې** :ـ (د+ر+هَ+دْ+کې)[اَف : پ (قاموس) کلمه]بسم الله، خبر، فضل ،دا ټکے هغه وخت وئيلے شي چې ماشُومان راپربوځي يا څۀ بله داسې واقعه پېښېږي

**درهم** :ـ (دِ+رْ+هَ+مْ)[فا، اِس، مذ، وا، ج : درهمُونه] و - درم ـ

پاس به داغ وي د لعين په سينه باندې

هــم درهــم او هــم ديــنـار د دې دنـيا (رحمٰن)

**دُرهه** :ـ (دُ+رْ+هَه) [اپ، اِس ،مؤ ،وا ،ج : دُرهې]دَم ،دم دُرهه ـ

**درهيسته** :ـ (دَ+رْ+هې+سْ+تَه) ، [اپ ، ص] درايسته، تاته نزدې ـ

**ـــ کول** :ـ اِص، درنزدې کول ـ

**درهيسته والے** :ـ (دَ+ر+هې+سْ+تَه+وا+لےَ) ، [اپ، ص] نزدې والے ـ

**درئي** :ـ (د+رَ+ئيْ) ،[اپ، اِس، مؤ] کناويز،يوه ربښمينه کپړه، دريائي ـ

**درئـي** :ـ (د+ر+ئـي) ،[اپ، اِس ،مـؤ ،وا ،ج : دريـانې] پـه غټـو سپنسـينو تـارُونو اوبدلې شوې کپړه چې په کټ اچولے شي او يا په فرش غوړولے شي ـ

**درې** :ـ (د+رې) [اپ ، حرف] (۱) لرې، ايسې، اخوا ـ(۲) پربږده ـ

**ـــ کول** :ـ اِص ،لرې کول، اخوا کول، ايسې کول ،د ځايه اُوچتول ـ

**ـــ کېدل**:ـ اِص ،لرې کېدل، اخوا کېدل، ايسې کېدل ،د ځايه اُوچتېدل ـ

**درې** :ـ (دْ+رې)، [اپ، اِس عدد] په شمار کښې دوؤ پسې ـ

يــو غفلــت بــل جهالــت دربــم شــهوت دے

د خوشــــحال د ځــــان بــــلادې هــــم دادرې

**دريا** :ـ (دَ+رْ+يا)[اَف : پ (قاموس)اِس ،مؤ] دريال، دريه، تمبل، دف ـ

**دريا** :ـ (دَ+رْ+يا) [اپ، اِس، مذ ،وا ،ج : دريابُونه] درياب، سيند ـ

هم په دا سپينو جاموچې معلومېږم

لکــه ابر هــم ګوهر يم هم دريا يم (رحمٰن)

**درياب** :ـ (دَ+رْ+يا+بْ) [اپ ،فا : دريا، اِس، مذ، وا، ج : دريابُونه] و - دريا ـ

هــر ماهي ئې په درياب کښې حمد وائي

هر مارغۀ ئې په چمن کښې ثناخوان دے (رحمٰن)

**دريابي** :ـ (دَ+رْ+يا+بي) [اپ ، ص] (۱) د سيند ،د دريـاب سره تعلق لرونکے ـ(۲) ډېر زيات ، نۀ ختمېدونکے ـ

**درې اتيـا** :ـ (درې+اَ+تْ+يـا) [اپ، اِس ، عــدد] پــه شــمار کښــې درې د پاســه ځلورشلې

**درې اتيالس** :ـ (دْ+رې+اَ+ت+يا+لَ+ش) [اپ (ب،خ) ،اِس عـدد] درې نوي، درې د پاسه څلور نيمې شلې ـ

**درې اتيـايم** :- (درې+اَ+تْ+يا+يَ+مْ)[اپ،ص،مــذ ،مؤ:درې اتيايمــه،ج:درې اتيايمې]په درې اتيايم نمبر-

**دريال**:- (دَ+رْ+يا+لْ)، [اَف،پ (قاموس)،اِس،مذ] ،و-دريا (اَف)

**درې اويا**:- (درې+اَ+وْ+يا)[اپ،اِس عدد]درې د پاسه درې نيم شلې،درې شپېتۀ لس

**درې اويــايم**:- (دْ+رې+اَ+وْ+يا+يَ+مْ)، [اپ،ص،مــذ ،(مؤ،وا:درې اويايمــه، ج: درې اويايمې] په درې اويايم نمبر-

**دريائي**:- (د+رْ+يا+ئي)، [اپ (ګن)،اِس،مؤ] ،و-درئي-

**درې ايکيځـه**:- (دْ+رې+کي+دْ+زه) [اَف:پ(قـاموس)،مؤ،وا ،ج:درې ايکيـزې] و-درې ايکيځه-

**درې پړيک** :ـ (دْ+رې+پْ+ړي+کْ) ،[اپ، اِس، ص ،مذ ،(مؤ، وا،: درې پړيکـه ، ج : درې پړيکې])درې ژنګړے، منافق، ټګ، چلولې، درې ډبيز ـ

**درې پښيز** :ـ (دْ+رې+پْ+شـي ياخي+زْ) ، [اپ، ص، مذ ، (مؤ ،وا : درې پښيـزه، ج : درې پښيزې] درې پښې، تپائي ،د دريو پښو ورکوټے مېز ـ

**درپيل** :ـ (دْ+رې+پَ+لْ) ، [اَف : پ (قاموس) اِس، مذ] اطريفل ـ

**درې پـلارې** :ـ (دْ+رې+پْ+لا+رې)، [اپ ، اِس] پـه پښـتنو کښـې د مروتـو د يـوې قبيلې نُوم ـ

**دريـې پلے** :ـ (دْ+رې+پ+لےَ) [اپ، ص، مذ] بجـل بـازي، د ببـړيو يـا شپشـستو لوبه ـ

**درې پنځـــــوس** :ـ (دْ+رې+پَ+نْ+دْ+زو+س) ، [اپ، اِس عـــــدد] درې د پاســـه پنځوس

**درې پنځوســـم** :ـ (دْ+رې+پَ+نْ+دْ+زو+سَ+مْ) ، [اپ، ص، مــذ ، (مــؤ، وا : درې پنځوسمه ،ج : درې پنځوسمې] په درې د پاسه پنځوسم نمبر ـ

**درې جريز** :ـ (دْ+رې+جَ+رِي+زْ)[اپ ، ص] درې مُونډيز، چې درې جرې لري

**دريځ** :ـ (د+رې+دْ+زْ) [اپ، اِس، مذ، وا ،ج : دريځُونه](۱) ممبر ـ (۲) دريس ، ګډا ، نڅا ـ

پــه لوبــو غرومــې وينـا دروميې نۀ پـه ځنـډو پـه تـال

نــرې زمــا ده نــوم مــې بــولې پــه دريــځ ســتائيوال

**دريځه** :ـ (دْ+رې+دْ+زَه) [اپ، اِس، مؤ، وا، ج : دريځې] دريځۀ، وړه کړکۍ ـ

**درې چنده** :ـ (دْ+رې+چَ+نْ+دَه) ، [اپ، ص ،مـؤ ،وا، ج : درې چندې] درې ګُون، درې ګونه، درې غبرګ ـ

**درې څلوېښت** :ـ (دْ+رې+تْ+سَ+لْ+وي+شْ+ياخْ+تْ) [اپ، اِس ،عدد] درې د پاسه دوه شلې ـ

**درې څلوېښتم** :ـ (دْ+رې+تْ+سَ+لْ+وي+شْ+ياخْ+تَ+مْ) ،[اپ ،ص ،مذ ، (مؤ، وا، درې څلوېښتمه، ج : درې څلوېښتمې] په درې څلوېښتم نمبر-

**درې څنډے** :ـ (دْ+رې+تْ+سْ+نْ+ډے)[اپ، ص ،مذ، وا، ج : درې څنډې، مؤ : درې څنډې ]درې ګوټے ـ مثلث،تکون-

**دريڅـۀ**:ـ (دْ+رې+تْ+سـَه)[اپ : دريچـه ،اِس ،مـذ، وا، ج : دريڅـې] دريچـه، وړه کړکۍ

لکـه يــو ښکلے ښکـته ګـوري د غريب جونګړه

ددنګ محل په دريڅو کښې سپينه سپينه ځانګې (پريشان ختک)

**دربډل** :ـ (د+رې+د+لْ) ، [اپ، مص مت] (۱) ولاړېدل، اُودربدل-(۲) تم کېدل ـ

خــوځــه ايــله د جام پــه ځوکو زما خولــۀ لګېده

تۀ په اوبو کښې راښکاره شوې لاس مې اودربدل (پريشان ختک)

**دربدلے** :ـ (د+رې+دلےَ) ، [اپ، مف ،مذ ،وا ، ج : دربدلي مؤ، دربدلې]

(۱) اُودرېدلے، ولاړ -(۲) تم شوے -

**درېـــدنځے** :- (د+رېِ+دْ+نْ+زےَ)، [اَف : پ (قـــاموس) اِس ص ،مـــذ ،وا ، ج: درېدنځي] د اُودرېدو ځاے -

**درېـدنګ** :- (د+ر+يِ+دَ+نْ+ګْ) ، [اَف : پ (قـاموس) حمـص] درېدنـه، درېـدۀ، اُودرېدۀ، ولاړېدۀ،تم کېدۀ -

**درېدنه** :- (د+رېِ+د+نَه)، [پ ،حمص] و - درېدنګ -

**درېدُونکے** :- (د+رېِ+دُو+نْ+کےَ) ،[پ ،فاع، مذ، وا، ج : درېدُونکي، مؤ : درېدوُنکې] اُودرېدونکے، ولاړېدوُنکے، تم کېدوُنکے -

**درېدۀ** :- (د+رېِ+ده)، [پ ، حمص] و - درېدنګ -

**درې دېرش** :- (دْ+رِيْ+دېِ+رْ+شْ) [پ ،اِس ،عدد] درې د پاسه دېرش -

**درې دېرشـم** :- (دْ+رِيْ+دېِ+رْ+ش+م) ، [پ، ص، مـذ ،(مـؤ ،وا ، دوې دېرشـمه ، ج :-، درې دېرشمې] په درې دېرشم نمبر -

**درې ډبیـز** :- (دْ+رېِ+ډ+بِـي+زْ) [پ ،اِس ،مـذ ،(مـؤ، وا : درې ډبیـزه، ج : درې ډبیزې] منافق،ټګ، چلولي، د کنځلو پـه ډول وئـېلے شي ،درې ژنګـے، درې پړیک -

**درې ژنګـے** :- (دْ+رېِ+ژَ+نْ+ګَـے) [پ (ب،خ)اِس، ص، مـذ ،وا، ج : درې ژنګـي ، مؤ : درې ژنګې] درې ډبیز، درې پړیک منافق، ټګ، چلولي -

**درېز** :- (دْ+رېِ+ژْیاګْ) ، [اَف : پ (قاموس) اِس) درېـش، د فـوځ پـه قطـار کنبـې اُودرول -

**دریس** :- (دْ+رِيْ+سْ)، [پ (ګن) اِس ،مذ ،وا ،ج : دریسان] ګډا ،نڅا -

**ـــ اچول** :- (ګن) اِص ،ګډا کول، ګډېدل، نڅا کول -

**درېسکلے** :- (دْ+رېِ+ْس+ک+لَے) ، [اَف : پ (قاموس) اِس ،مذ ]درې کلن اُوښ

**درېـش** :- (دْ+رېِ+شْ)[اَف : پ (قـاموس) اِس ، مـذ] د سـراود ږېـرې جـوړول، حجامت

**ـــ نیول** :- اِص ،د سراو د ږیرې جوړول -

**درې شپېتم** :- (دْ+رِيْ+شْ+پېِ+ت+مْ)، [پ، ص، مذ ، (مؤ ،وا : درې شپېتمه ،ج : درې شپېتمې] په درې شپېتم نمبر -

**درې شپېتۀ** :- (دْ+رِيْ+شْ+پېِ+ته٘) ، [پ ،اِس، عدد)]درې د پاسه درې شلې -

**درې شـپېتۀ لـس** :- (دْ+رېِ+شْ+پېِ+تـه٘+لَ+سْ)[پ (ب،خ) اِس عـدد]و - درې اویا -

**درېشي** :- (د+رېِ+شِي) [پ ،اِس ، مؤ) (۱) سر اوږیره جوړول-(۲) د زمکې لوړه ژوره سمول-(۳) وردي-(۴) کوټ پتلون-(۵) فوځي قطار -

**ـــ اچول** :- اِص ،(۱) وردي اغوستل-(۲) کوټ پتلون اچول -

**ـــ کول** :- اِص ،(۱) درېشي اچول-(۲) قطار برابول -

**درېشېرلے** :- (دْ+رېِ+شېِ+رْ+لےَ) [اَف :-، پ (قـاموس) اِس ،مـذ] ځلور کلن وز، د بزې یا چېلۍ هغه نر بچے چې عمر ئې ځلور کاله وي، چېلے -

**درې ښاخۍ**:- (دْ+رېِ+شا+یاخا+خي)[پ، اِس، ص، مؤ] درې غاښے، شانګۍ، د لرګي نه جوړ درې غاښیزه اٰله چې پوګ یا ډېران پرې صفا کولے شي -

**درېښـکے** :- (دْ+رېِ+شْ+یـاخْ+کےَ) [اَف : پ (قـاموس) اِس ،مـذ] ورېښـکے ،د مندانهوُ د رانښاکلو رسۍ ،ورشکے -

**دریغ** :- (د+رېِ+غْ) [پ، حرف ،مذ] سرفه، اٰسره، سُستي -

**ـــ نۀ کول** :- اِص، صرفه نۀ کول، اَسره نۀ کول -

**بې دریغه** :- اِص، بې صرفې، بې حسابه، ډېر زیات -

**درې غاښے** :- (دْ+رېِ+غا+شَے یـا خَے) [پ، اِس، ص، مـذ ، وا ،ج : درې غاښـي، مؤ درې غاښې] درې ورګے، په غاښ درې ،درې کلن ،چې عُمر ئې درې کاله وي-

**دریغه** :- (دْ+رېِ+غَه) [پ ،حرف]کاش، افسوس، ارمان-

اے ورستے عـقـله دریغه که پخوا وے
مابه ولې په خپل ځان کړه هومبره شنده (خوشحال)

**دریغه** :- اِص ،اٰرمان اٰرمان ،افسوس افسوس -

دریغه دریغه که روستے عقل ړومبے وے
دانـــجـام خـبرې نـۀ شـي پـه اٰغـاز (رحمٰن)

**درې کلـن** :- (دْ+رېِ+ک+لَ+نْ)، [پ، اِس، ص ،مـذ (مـؤ ،وا، درې کلنـه ،ج: درې کلنې] و - درې غاښے -

**درېکټ**:- (دْ+رېِ+ګَ+ټْ) [اَف : پ (قـاموس) اِس، مـذ]یوه لوبـه چـې پـه زمکـه ځلور کرښې راکاږي او دوه کسان ئې د درېو درېوکانړو په مدد کوي -

**درېګون** :- (دْ+رېِ+ګُو+نْ) [پ ،ص، مذ ، (مؤ، وا : درې ګُونـه، ج : درې ګُونې] و - درې چنده -

**درې ګُونه**:- (دْ+رېِ+ګُو+نَه) [پ، ص ،مؤ ،وا ، ج : درې ګُونې] و - درې چنده -

**درېګے** :- (دْ+رېِ+ګےَ) ،[اَف : پ )قاموس)، اِس ،مـذ] سـه سـه ،د درېـو بېـډیو یـا شپشتو یوه لوبه چې جواري پرې کېږي -

**دریـم** :- (دْ+ر+ي+مْ) ،[پ، اِس، عـدد ،مـذ ،و(مـؤ، وا : دریمـه ،ج : دریمـې] (۱) په دریم نمبر په دویم پسې-(۲) بهـرنے ،پـردے ،چـې پـه څـۀ کـار کنبـې ئـې کار نۀ وي -متل : دریمه ستا ځویمه! (۳) د پیر یا ګل ورځ -

**درېمان**:- (دْ+رېِ+ما+نْ) [پ، اِس ،مذ (،مؤ، وا : درېمانه ،ج: درېمانې] مېنځګړے، منصف، ثالث، مرکیذ، دریم ګړے -

**دریم کجـه**:- (دْ+ر+يَ+مْ+ک+جَـه) [اَف : پ (قـاموس) ص] د پاخۀ عمر غـوا چې عمر ئې اُوه اتۀ کاله وي -

**دریـم ګـړے**:- (دْ+ر+يَ+مْ+ګ+ړَے) ،[پ ، اِس، ص، مـذ، وا، ج : دریـم ګـړي، مؤا : دریم ګړې] - و - درېمان -

**درې منـازېز** :- (د+رېِ+مَ+نـا+رِي+زْ) ،[پ ،ص] چـې درې منـارې لـرې، درې منارو واله -

**دریم نمبریز**:- (دْ+رِ+يَ+مْ+نَ+مْ+بْ+رِي+زْ) ،[پ ، ص] په دریم نمبر -

**درې مُونډېز** :- (دْ+رېِ+مُو+نْ+ډِي+زْ)، [پ ، ص] و - درې جړېز -

**دریمه** :- (دْ+ر+ي+مَه) ،[پ، اِس، مؤ] د مړي یا د وادۀ دریمه ورځ -

**دریمـه خـور** :- (دْ+رْ+ي+مَـه+خو+رْ)[پ ،اِس، مـؤ ] اسـلامي پنځـمـه میاشت چې جمادي الاولٰی ورته وائي -

**درینځے** :- (دْ+رِيْ+،نْ+دْ+زےَ) [پ، اِس، مذ] زلزله -

**درینـــده** :- (د+رِيْ+نْ+ده)[اَف :پ (قـــاموس) اِس، مـــؤ، وا ، ج : درینـــدې]و - درمنده -

**درېندے** :- (دْ+رېِ+نْ+دےَ)[اَف : پ (قاموس) اِس، مذ] و - درندے -

**درینـګ** :- (دْ+رِيْ+نْ+ګْ) ، [اَف : پ (قـاموس) اِس ،مـذ ، وا ،ج : درینګُونـه] (۱) سخت، کلک، سخته زمکه-(۲) د اُونو بڼ یا ځنګل -

**ددرینګه ویشتل** :- اِص، (۱) په سخته زمکه ویشـتـل-(۲) نا کامـه کـول ،نـا اُمېـده کول

**درینګل** :- (دْ+رِيْ+نْ+ګ+لْ)، [اَف : پ (قـاموس) مـص مـت](۱) پلنَـول، خـورَول-(۲) درَبل ،په زور یا په دباؤ یو څیز په بل څیز کنبې ځایول-

**درینګلے** :- (دْ+رِيْ+نْ+ګْ+لےَ) ،[اَف پ (قـاموس) مـف ،مـذ ،وا، ج : درینګلي ،مؤ: درینګلې] (۱) پلن کړے، خور کړے-(۲) درَبلے ،یـو څیـز پـه بـل څیـز کنبې په زور ځاے کړے -

**درینګلے** :- (دْ+رِيْ+نْ+ګ+لےَ)، [ (پ (سو) اِس ص](۱) د غصې پـه خالـت کنبـې چې غرېو ئې ډک وي-(۲) ډېـر ډک مـوړ چـې خېټـه ئې ښۀ برجغـه وي-(۳) غټ پټ چې جامې پرې تنګې وي -

**درینګنه** :- (دْ+رِيْ+نْ+ګ+نه)، [اَف : پ (قـاموس) حمـص] (۱) پلنونـه، خورونـه

(۲) دربنه ،یو څیز په بل څیز کښې په زور ځایونه -

**درینګـول** :- (دْ+رِيْ+نْ+ګ+و+لْ ، [اَف : پ (قـاموس) مـص مـت] (۱) پلنـول خورول-(۲) دربل، یو ځیز په بل څیز کښې په زور ځایول -

**درینګوُنکـے** :- (دْ+رِيْ+نْ+ګـو+نْ+کےَ)، [اَف : پ (قـاموس) فـاع، مـذ ، وا ، ج : درینګـــونکي، مـــؤ : درینګـــوُنکې] (۱) پلنـــووُنکے، خـــوروُنکے- (۲) دربُونکے، یو ځیز په بل څیز کښې په زور ځایووُنکے -

**درینګونـــه** :- (دْ+رِيْ+نْ+ګ+و+نَــه) ، [اَف : پ (قـاموس) حمـص] (۱) پلنونـه، خوروَنه-(۲) دربَونه، یوځیز په بل څیز کښې په زور ځایونه -

**درینګوُونکـے** :(د+ر+ي+و+نْ+کےَ)، [اَف:پ(قاموس)، فاع،مذ ،وا ،ج:درینګوُونکي،مؤ:درینګوُونکې] ،(۱)پلنوُونکے،خوروُونکے،(۲)دربوُونکے،یو څیز په بل څیز کښې په زور ځایوُونکے-

**درینګه** :- (دْ+رِيْ+نْ+ګه)[اَف : پ (قاموس) اِس ،مؤ ،وا ، ج : درینګې] سخته زمکه -

**درینګے** :- (دْ+رِيْ+نْ+ګےَ)[اَف : پ (قاموس) اِس ،مذ] (۱) یوقسم مرض- (۲) سخت میدان -

**درینګېدل**:- (دْ+رِيْ+نْ+ګې+د+لْ) [اَف : پ (قاموس) مص لا] پخېـدل ،سختېدل ، محکم کېدل -

**درینګېدنـــه** :- (دْ+رِيْ+نْ+ګې+د+نَــه) ،[اَف : پ (قـاموس) حمـص] پخېدنـه، سختېدنه، محکم کېدنه -

**درینګېدوُنکے** :- (دْ+رِيْ+نْ+ګې+دُو+نکےَ) ، [اَف : پ (قاموس) فـاع ،مذ ، وا ، ج : درینګېـدُونکي، مـؤ : دریګېـدُونکې] پخېـدُونکے، سـختېدوُنکے، محکم کېدوُنکے -

**درې نـوي** :- (دْ+رې+نِ+وِيْ) [پ، اِس، عـدد] درې د پاسـه څلور نیمې شـلې، درې اتیالس -

**درې نوي یم** :- (دْ+رِيْ+نِ+وِي+يْ+مْ)، [پ، اِس، عـدد ، مـذ : مـؤ، وا : درې نـوي یمه، ج : درې نوي یمې] په درې نوي یم نمبر، درې اتیالسم -

**دریـنے** :- (دْ+رِيْ+نےَ)، [پ (ظفر) اِس، مذ ، وا ، ج : دریني] سپېرمه -

**درې ورګے** :- (دْ+رې+وَ+رْ+ګے) ، [اَف : پ (قـاموس) اِس، ص ،مـذ ، وا ، ج : درې ورګي، مؤ : درې ورګې]) ،و - درې غاښے -

**دریه** :- (دَ+رْ+یَه)، [اَف : پ (قاموس) اِس، مؤ، وا ، ج : دریې] ، و - دریا (اَف)

**دړ** :- (دَ+ړْ) ، [پ، اِس، مذ ، مؤ : دړه] (۱) د تلې یو چابړے، د وزن کاڼے-

چې ئې دړ له لاسه پرېوځي
په خوښئ به هغه کښېوځي (صدر خان خټک)

(۲) د بنیادم تنه بُوده-(۳) آرټ، کمېشن -

**ـــ اخستل** :- اِص، آرټ اخستل، کمېشن اخستل -

**ـــ نیول** :- اِص ،دړوهل، تله نیول -

**ـــ وهل** :- اِص ،و- دړنیول -

**دړا** :- (د+ړا) ، [پ، اِس، مؤ، وا] دېوال جوړولو په وخت کښې په مېـنځ کښې د بل دېوال جوړولو د پاره لږ لږ خالي ځاے -

**ـــ پرېښول** :- اِص ،د دېوال جوړولو په وخت کښې په مېـنځ کښې د بـل دېـوال جوړولو دپاره لږ خالي ځاے پرېښول -

**دړاکه** :- (د+ړا+کهَ) [پ ،اِس، مؤ] دبکه ، رُعب، دړکه -

**ـــ کول** :- اِص ،دبکه کوَل، رُعب اچول -

**دړد** :- (دَ+ړْ+دْ) [پ ،فـا : درد اِس ،مـذ ، وا ،ج : دړدُونـه] درد ، خُـوږ، څړیکـه، برېښ، سوے،تکلیف -

نۀ په ځان مې اعتماد شته نۀ ویسا په خپلو سترګو
مایُـوسـي مـې وظـیفه شوه لېونے کړمه دړدُونو (پرېشان خټک)

**ـــــ اخستل**:- اِص (۱) خوږېدل، دړد شروع کېدل-(۲) دړد لـرې کـول، تکلیف کموَل

**دړدړے** :- (د+ړْ+دَ+ړَے) ، [اَف : پ (قاموس) اِس، مذ] پائېکو، پیکو -

**دړدنـــګ** :- (دَ+ړْ+دَ+نْ+ګْ) ، [پ ، ص ،مـــذ ،وا ، وا ، ج : دړدنګُونـــه] (۱) د خوشـحالئ ټوپونـه، دړي دنـګ، کارکُوچکـه-(۲) تېـزه منـډه یـا ترپـه- (۳) لحظه، ساعت -

**په یوه دړدنګ ایستل** :- اِص، په لږ ساعت کښې بهر کول، په منډه ویستل-

**په یوه دړدنګ تلل** :- اِص ،په یوه ساه تلل، په تېزه منډه تلل -

**دړدُوبړه** :- (دَ+ړْ+دُو+بْ+ړه+)، [پ، ص ،مؤ] جوش -

**دړدُوړ** :- (دَ+ړْ+دُوْ+ړْ) [پ ،ص ،مذ] (۱) مات ګډ-(۲) مېده مېده ،چُوري چُوري

**ـــ کول**:- اِص ،(۱) مات ګډ کول-(۲) مېده مېده کول، چوُري چُوري کول -

**ـــ کېدل** :- اِص ،(۱) مات ګډ کېدل-(۲) مېده مېده کېدل، چُوري چُوري کېدل -

**دړدول** :- (د+ړْ+دَ+و+لْ) [پ ،مص مت] و- دردول -

**دړدونه** :- (د+ړ+دَ+و+نَه) [پ ، حمص] و- دردونه -

**دړدُوونکـے** :- (د+ړْ+دَ+وُو+نْ+کـےَ)، [پ ،فـاع، مـذ ،وا ، ج : دړدووُنکي،مـؤ : دړدووُنکې] ، و - دردووُنکے -

ستا دوادۀ په دړدوُونکي خبر
لمبه شـوم اُورپېدم اُولړځېدم (پرېشان خټک)

**دړدېدل** :- (د+ړْ+دې+د+لْ)[پ، مص لا] و - دردېدل -

**دړدېدنه** :- (د+ړْ+دې+د+نَه) [پ ، حمص] و - دردېدنه -

**دړدېدُونکے** :- (د+ړْ+دې+دُو+نْ+کَےَ)[پ ،مف ،مـذ ، وا ، ج : دړدېـدُونکي، مـؤ : دړدېدوُنکې] و - دردېدُونکے -

**دړدېدۀ** :- (د+ړْ+دې+ده') [پ ، حمص] و - دړدېدنه -

**دړز** :- (دَ+ړْ+زْ) [اَف : پ (قاموس) اِس، مذ، وا ،ج : دړزُونه] د جامې چیر یا څیر

**دړز** :- (دْ+ړَ+زْ) [پ، اس ، صو] و- درزَ -

**دړزول** :- (دْ+ړ+زَ+و+لْ) [پ، مص مت] و - درزَول -

**دړزونه** :- (دْ+ړ+زَ+و+نهَ)[پ ، حمص] و -درزَونه -

**دړزووُنکـے** :- (دْ+ړ+زَ+وُو+نْ+کےَ) [پ، فـاع، مـذ ،وا ، ج : درزووُنکـي، مـؤ: دړزووُنکې] و - درزووُنکے -

**دړزېدل** :- (دْ+ړ+زې+د+لْ)[پ، مص لا] ، و - درزېدل -

**دړزېدنه** :- (دْ+ړ+زې+د+نَه) [پ ، حمص] و - درزېدنه -

**دړزېـدُونکے** :- (دْ+رذې+دُوْ+نْ+کےَ)[پ، مـف، مـذ ، وا ،ج : دړزېـدُونکي، مـؤ : دړزېدُونکې] و - درزېدوُنکے -

**دړزېدۀ** :- (دْ+ړ+زې+ده') [پ ، حمص] و - درزېدنه -

**دړغم** :- (دَ+ړْ+غَ+مْ)[پ (اورک) ص] ، (۱) دړدغم، ګډوډ -

هـر قسمت چې صادق ګوري
وي دا ســم کـلـــه دړغــم صادق الله اورکزے)

**دړک** :- (دْ+ړ+کْ)، [پ (اورک) اِس صو، مذ] د زړۀ رپ -

د زړۀ هر دړک مې ستا خیالونه جوړشي
هــرهــر خـیال شــي تـصویرونه دستا (صادق الله اورکزے)

**دړکه** :- (دْ+ړ+کهْ) ، [پ، اِس، مؤ، وا ، ج : دړکې] ، و-دړاکه -

د رقیب په دړکو مې پروا نۀ شي
نۀ ویرېږي امزري د سپو له غپه (عبدالعظیم)

**دړکېدل** :- (دْ+ړ+کې+د+لْ )، [پ، مص لا] ، درزېدل، دربېدل، ډبېدل -

**زړۀ دړکېدل** :- اِص، زړۀ درزېدل، زړۀ دربېدل، زړۀ ډبېدل -

**دړکېدلے** :- ( دْ + ړ + کې +د + لےَ)[پ، مف، مذ ، وا ، ج :دړکېدلي، مؤ : دړکېدلې ] ، درزېدلے، دربېدلے -

**درکېدنه**:۔ (دُ+رِ+کې+د+نَه) [پ، حمص] ،درزېدنه، دربېدنه، ډوبېدنه، درکېدۀ۔

**درکېدُونکے**:۔ (دُ+رِ+کې+دُو+نْ+کےَ) [پ ،مف ،مذ ،وا ، ج : درکېدُونکي، مؤ : درکېدُونکې] ، درزېدُونکے، دربېدُونکے، ډوبېدُونکے۔

**درکېدۀ**:۔ (دُ+رِ+کې+دهٔ) [پ ، حمص] و - درکېدنه۔

**درِوائي**:۔ (دَ+رِ+وا+ئي) [پ، اس، مذ ،وا ،ج : درِوايان] تولي،درِوي ،هغه سړے چې د غلې تول کوي۔

نرخ د وصل درِوائي دبخت رانغلو
کور د بخت چې وي د صبر په سنجو (علي خان)

**درُوکي**:۔د+رُو+کيْ)[پ، اس، مؤ](۱) د لرګي ورکوټې دره۔(۲) د چلغوزي د وېخ هغه دره چې د ډېوې په توګ بلولے شي ۔

**دُرونے**:۔ (دُ+رُو+نےَ) [پ (اورک] اس ،مذ ،وا ، ج : دُرونـي] خربـړے، خُمبه، دُورِنګ

**دروي**:۔ (دَ+رِ+وي)[پ (ب،خ) اس ،مذ ، وا ،ج : درويان] ،و -درِوائي۔

**دره**:۔ (دَ+ره) ،[پ، اس ،مؤ ،وا ، ج : درې] ،(۱) د لرګي يا د اَډوکي ټوټه۔(۲) د انسان تنه بُوده۔(۳) ور ، دروازه۔(۴) د تلې پارسنګ۔(۵) درزيا سُوره۔(۲) د خربوزې ترازه۔

ښځ چې ببلـه مـې پـه غـم شـوه د زړۀ دره
ګونـدې شـي پکښـې لمـن د وصـل اَره

**ـــ بېلول**:۔اص ،د لرګي څۀ ټوټه ځېرل او جدا کول ۔

**ـــ بېلېدل**:۔اص ،د لرګي څۀ ټوټه ځېرلې کېدل او جدا کېدل۔

**ـــ پورې کول**:۔اص ،دره ترل، ور پورې کول۔

**ـــ ترل**:۔اص ،و- دره پورې کول۔

**ـــ راوتل**:۔اص ،د غرۀ يا اُوچتې زمکې مورګه بهرته راوتل ۔

**ـــ کول**:۔اص، (۱) لرګے ځېرل۔(۲) د تلې پارسنګ برابرول۔

**ـــ وهل**:۔اص، د تلې پارسنګ برابرول۔

**درنه درۀ سکه لرل**:۔اص ،درنه ځُثه لرل۔

**دره دوره**:۔ (دَ+ره+دُو+رَه) ، [پ، اس، مؤ] دُوره دبکه، شور زور، رُعب داب۔

**ـــ جوړول**:۔اص ،دره دُوره کول، شور زور جوړول، رُعب داب اچول۔

**ـــ کول**:۔اص ،و - دره دُوره جوړول۔

**دره مار**:۔ (دَ+رَه+ما+رْ) [پ، اس، فاع، مذ، وا، ج : دره ماران] شُوک مار، لُوټ مارکوونکے۔

**دره ماري**:۔ (دَ+رَه+ما+رِيْ)[پ، اس ،مؤ] شُوک ماري، لُوټ ماري۔

**دره ماکو**:۔ (دَ+رَه+ما+کُوْ) [اَف : پ (قاموس) اس، مذ] يو قسم بُوټے چې په شولو کښې راټوکېږي۔

**درې**:۔ (د+رِ+ی) [پ ،اس، مؤ] (۱) د څلورو سېرو وزن۔(۲) د ښځو يو کالے چې په تندي ئې را اوېزاندوي،ټيکه ۔

په پيرۍ کښې د ځوانۍ چارې نۀ شي
مـه ږده اے زړې بـوډۍ په سر درۍ (حميد)

(۳) د خورک د لوښو الماری۔

**درې درې**:۔ (دَ+رې+دَ+رې)[پ ، ص] ، درې ورې۔(۱) ټوټې ټوټې، ذرې ذرې (۲) ډېر غمژن۔

**درې دنګ**:۔ (دَ+رِي+دَ+نْ+ګْ) [پ (ب،خ)، اس ،مذ] ،د خوشحالۍ مجلس۔

**درېز**:۔ (د+رِي+زْ)، [پ، اس، ص ،مذ] ،څلور سېريز ۔

**درېز**:۔ (د+رِي+زْ) [اَف : پ (قاموس) اس، مذ] د لاندې په غوښه کښې راځوړند غوندې ټوټه، د لاندې خوټه۔

**درې ورې**:۔ (دَ+رې+وَ+رې) [پ، ص] ، و - درې درې۔

هېڅ لـه خپله خُويه نۀ اَوړي په عمر
که ئې درې په تندي کړې درې ورې (خوشحال)

**ـــ کول**:۔اص ،(۱) ټوټې ټوټې کول، ذرې ذرې کول۔(۲) ډېر غمژنول۔

**ـــ کېدل**:۔اص ،(۱) ټوټې ټوټې کېدل، ذرې ذرې کېدل ۔ (۲) ډېر غمژنېدل۔

**دُزار**:۔ (دُ+زا+رْ) ، [پ ،اس ،ص، مذ] ، جوار ۔

**دُزارينه**:۔ (دُ+زا+رِي+نَه) [پ ،اس ،ص، مؤ] ،د جوارو ډوډۍ، جواري ،سُکړک ۔

**دزن زتـي**:۔ (د+زْ+نَ+تـيْ) [پ (وز) اس] ،دغـدغ، د ټکېـدلې واورې معمـولي غوندې فالُوده۔

**دژه**:۔ (دُ+ژَهْ) [پ (ب،خ)،ص ،مؤ] ، لواړه، خيږه، چې پسته نۀ وي، چې اَواره نۀ وي۔

**دسپنه**:۔ (دَ+س+پ+نَه) [پ، اس ،مؤ، وا ، ج : دسپنې] ، (۱) د ټوپک کرۍ (۲) ښهټيې۔(۳) د زرګر اله۔

**دست**:۔ (دَ+س+تْ) [اس ،مذ ،وا ،ج : دستُونه] نرې لوے بول، ريخې، پشکے ،پرپرے ۔

**ـــ راتلل**:۔اص، په دستُونو کېدل، په دستُونو تلل، پشکے وهل، ريخې وهل، اغېرکېدل ،په دستُونو کښېناستل۔

**په دستونو تلل**:۔اص، و - دست راتلل۔

**په دستونو کښېناستل**:۔اص، و - دست راتلل۔

**په دستونو کېدل**:۔ اص ،(۱) دستونه لګېدل، خېټه بهېدل، په يو مخ دستُونه راتلل، دستُونه کول۔(۲) يرېدل، يرې اخستل، ډارېدل۔

**د ستُونه کول**:۔اص، و -په دستُونو کېدل۔

**دستُونه لګېدل**:۔اص ،و- په دستُونو کېدل۔

**دستار**:۔ (دَ+س+تا+رْ)[فا، اس، مذ، وا، ج : دستارُونه] پګړۍ، پټکے، دستور۔

هغه يار مې هسې ناست د زړۀ په سر دے
لکـه اېښے چې چا ګل وي پـه دسـتار (رحمٰن)

**ـــ بدلول**:۔اص ،ورور جوړول، د خوږې دوستۍ وعده کول ۔

**ـــ پرېوتل**:۔اص،(۱) پګړۍ د سر نه غورځېدل۔(۲) شرمېدل، سپکېدل۔

**ـــ په سر اېښودل**:۔اص ، دستار ترل۔

څوک سرتور پښې ابل خاورو لره درُومي
چـا کاږۀ دي پـه سـر ايـښې دستارونه (رحمٰن)

**ـــ په سر کول**:۔اص، و - دستار ترل۔

**ـــ ترل**:۔اص ،پګړۍ ترل،دستار په سر کول ،پټکے په سرول۔

چې دستار تـړي هزار دي
د دستار سړي په شمار دي (خوشحال)

**خړول**:۔اص، بې عزته کول۔

**ـــ ورپه سر کول**:۔اص، (۱) د چا دستار ترل۔(۲) شرمول، بې عزته کول۔

**کوږ**:۔اص، د وياړ يا د فخر نخښه۔

د ريـا خرقـه ئـې خـدا ے مـه کـړه پـه غـاړه
رحمٰـن کـوږ دسـتار تـړلے قلنـدر دے

**دستار بندي**:۔ (د+ستار+ب+نْ+دِيْ)، [فا، اس ،مؤ] دستار د ترلوکار د يو مشر، صوفي، عالم سردار په سر د مشرۍ دستار ترل۔

**دستانه**:۔ (دَ+س+تا+نَه) [فا، اس ،مؤ، وا ، ج : دستانې] ،دستګله، پـه لاسونو کښې د اچولو جورابه شان چې د ورۍ يا څرمنې نه جوړه وي، دسماغُو ۔

**دست پـه دست**:۔ (دَ+س+ت+پـه+دَ+س+تْ)، [پ، تـر، اس، مرکب] ، لاس پـه لاس، سمدستي۔

دست په دست که د خپل کار په درستول ئې
لاپـخوا تـر خـان وړومبے د بـل په کارشه (رحمان)

**دستخط** :ـ (دُ+سْ+تْ+خَ+طْ) ، [فا، اس، مذ، وا، ج : دستخطُونه] ،لاس ليک ، خپل نُوم په خپل لاس ليکلے شوے ، دستخط ـ

چې د يار پرې دستخط راغے ترما پورې
څـهٔ کاغذ دے څهٔ کاغذ دے څـهٔ کاغذ (رحمت داوي)

**ــــ کول** :ـ اص ،خپل نُوم په خپل لاس ليکل، دڅهٔ خبرې تصديق کول ـ

**دسخطي** :ـ (دَ+سْ+تْ+خَ+طِيْ) ، [پ، اس] ،دستخطي، لاس ليک کونه ـ

**دسترخوان** :ـ (دَ+سْ+تْ+رْ+خْ+وا+نْ) ، [فا، اس، مذ ،وا، ج : دسترخوانُونه] ، درسته خان ،د ډوډې څپُونړے ، کندُورے، هغـه کپړه چې د ډوډې خوړلو د پاره غوړولے شي ـ

**دسترک** :ـ (دُ+سْ+تْ+رَ+کْ) ،[پ ، اس ،مذ ،وا، ج : دسترکُونه] هغـه لرګے چې ډول پرې ډنګوي، د ډول لړے ـ

**دستک** :ـ (دَ+سْ+تَ+کْ)، [پ ،اس ،مذ] ،(۱) د راهداري پروانه، پاسپوټ ـ (۲) د حساب کتاب روزنامچه (۳) هغـه وارهٔ دستکي چې د چت د پاسه د کړو په مېنځ کښې لګولے شي، دستکے ـ

**دستک** :ـ (دَ+سْ+تَ+کْ) [فا ، اس، صو، مذ، وا، ج : دستکُونه] ،(۱) د لاس ټپ، تاړې (۲) وریاتمبهٔ ته ډز ورکول، ور ډبول ـ

**دستکي** :ـ (دَ+سْ+ت+ک+ی) [اَف : پ (قاموس) اس، مؤ] يو قسم ډوډې ـ

**دستکے** :ـ (دَ+سْ+ت+کے) [پ، اس، مذ، وا، ج : دستکي] ،(۱) و - دستک ـ (۲) د اندرپائے يا پوړې لرګے ـ

**دستګله** :ـ (دُ+سْ+تْ+ګ+لَه) [پ ، اس، مؤ، وا، ج : دستکلې] ،و - دستانه

**دستمال**:ـ (دَ+سْ+تْ+ما+لْ) [فا، اس ،مذ ،وا ،ج : دستمالُونه ] ،دسمال، رومال

**دستمايه** :ـ (دَ+سْ+تْ+ما+يهَ) [اَف : پ (قاموس) اس ،مذ ،وا، ج : دستمائے] ،د ډال يا د کنګل موټے ـ

**دســـتمبول** :ـ (دَ+سْ+تَ+مْ+بـــو+لْ) ،[اَ : پ (قـــاموس) اس، مـــذ ، وا، ج : دستمبولان] ، ورکوټے خټکے، ورکوټې خربوزه ـ

**دسـتُور** :ـ (دَ+سْ+تُو+رْ) [فـا ،اس ،مـذ ، وا ،ج : دسـتُورونه] (۱) دود ، قاعـده، طريقه،رواج ـ

ملامت په عاشق نبائي دا دستُور دے
چې روغ خلق په رنځور پورې خنداکا (رحمٰن)

(۲) ائين، قانون ـ

**ازلي دستور** :ـ اص، پخوانے طريقه، زوړ دود ـ

سيـال د سيـالانــو سره ځـي دا ازلي دستُور دے
داهغـه ځيزدے چې جوړکړے ئې دا ټول فتور دے (پرېشان خټک)

**له دستور وتل** :ـ اص ،له رواجه وتل، د ټاکلي دود نه بغاوت کول ـ

دا جذبه د عاشقۍ نۀ ده نورڅهٔ ده
ګنې کله څوک وتے شي له دستوره (رحمٰن)

**دستُورساز**:ـ (دستُور+سا+زْ)، [فا ، اس، ص، مـذ] دسـتُور جـوړووُنکے، ائـين ساز

**دستُورسازي** :ـ (دستُور+سا+زِيْ) [فا ، اس، مؤ] ائين سازي، دستور جوړونه

**دستوره** :ـ (دَ+سْ+تُو+رَه) [پ ،اس ،مـؤ ،وا ، ج : دسـتُورې] طريقـه، قاعـده ،دود ـ

**دسته** :ـ (دَ+سْ+تَـه) [فـا ، اس ،مـؤ ،وا ، ج : دستې] (۱)لاستے ،مُوټے ،قبضـه ، (۲)د څلير ويشت کاغذونو يو بنډل -(۳)د فوځ يوه ټکړه-

**دستي** :ـ (دَ+سْ+تِيْ)[پ، ص] فوري، زر، سم دلاسه ،په هغه وخت ـ

او ټکـتُونـه ئې دسـتي ورتـه پـه مخ اُويشتل
او بيا په ملاکښې ئې په لته ترې نه ټک اوويستو (پرېشان خټک)

**دســـخط** :ـ (دَ+سْ+خَ+طْ) [پ ،فـا : دســخط اِس، مـذ ، وا ، ج : دسـخطُونه] و - دستخط

**دسخطي** :ـ (دَ+سْ+خَ+طِيْ) [پ، اس، مؤ] و - دسخطي ـ

**دسـره** :ـ (د+سَ+ره) [پ ، حرف] (۱) بېخي، بالکـل، هرګـز (۲) د شروع نـه، داول سرنه ـ

**ــــ دسره کول** :ـ اص، (۱) د شروع نه لاس پرې پورې کول (۲) کـارختمول ، کـار سرته رسول ـ

**ــــ نۀ کول** :ـ اص، بېخي نۀ کول ـ

**ــــ نۀ ورتلل** :ـ اص، بېخي نۀ ورتلل، بالکل نۀ ورتلل ـ

**دسلاپ** :ـ (دَ+سَ+لا+پْ)، [پ، اس، مذ] بُونې، د دوکاندار د سودا شروع ـ

**ــــ کول** :ـ اص ،بونې کول، سودا شروع کول ـ

**ــــ کېدل** :ـ اص ،بُونې کېدل، سودا شروع کېدل ـ

**دس لمبرے** :ـ (دَ+سْ+ل+م+بْ+رے) ، [پ ،اس، ص، مـذ ، وا ،ج : دس لمبري] ـ نمبردس، اُوچت بد معاش ـ

**دسماغو** :ـ (د+سْ+ما+غُوْ) ،[اَف :پ (قاموس) اس، مذ] و - دستانه ـ

**دســمال** :ـ (د+سْ+مـا+لْ) ،[پ، فـا : دسـتمال اس ،مـذ ،وا ، ج : دسـمالُونه]و - دستمال

ناخبر خلـق ئې ولې شـفـق بـولي
دا زما د زړهٔ له ذخمه دسمال پرېوت (حميد)

**ــــ ورکول** :ـ اص ،د کوژدنې په وخت د رومال نخښهٔ ناوې ته ورکول، رومـال پـه نخښه کښې ورکول ـ

**ــــ وړل** :ـ اص ،د کوژدن په وخت د ناوې کورته نخښه وړل ـ

**دسماله** :ـ (دَ+سْ+ما+لَه) [پ، اس، مؤ، وا ، ج : دسمالې] هغـه لنبـتـے يـا پهـه چې د پرهر د پاسه ئې ږدي ـ

زۀ آرام لکــه بســمل پــه پرهــار مُـــوم
لــه تـا نـۀ غــوارم دسـماله راشــه کښــېنه

**دسـمبر**:ـ (دَ+سَ+مْ+بَ+رْ) [اَنګ ،اس، مـذ] د انګرېـزي کـال اخري مياشت، دولسمه مياشت ـ

**دُسهره** :ـ (دُ+س+هْ+رَه) ،[ه، اس، مؤ] د هندوانو يوه دستُوره چې د اسو پـه لسم تاريخ کولے شي ـ

**دشت** :ـ (دَ+شْ+تْ) ،[فا، اس، مذ، وا ، ج : دشتُونه] مېره، ځنګل، صحرا ـ

خوب خندا دېلتانهٔ په زمکه نشته
څـهٔ آرام بـه په دا دشـتې کربلاکا (رحمٰن)

**دشوئے** :ـ (د+شُوْ+ئے) [اَف : (قاموس) اس ،مذ ،وا، ج : دشويُونه] لاس وينځونے

**دښت** :ـ (دَ+ښْ يا خْ+تْ) [پ فا : دشت ،اس ،مذ ، وا ،ج : دښتُونه] و - دشت

**دښکو** :ـ (دَ+ښْ يا خْ+کُوْ) [اَف : پ (قاموس) اس، مذ] شيشړ، چوړُو، تبخک، يو قسم ته مارغهٔ ـ

**دُښمن** :ـ (دُ+ښْ ياخْ+م+نْ) [پ، فا : دشمن ،اس، مذ، وا، ج : دښمنان] دُښمن، دښنُو، دښمن،مخالف، ازار رسووُنکے ـ

هربخيل د خداے دښمن دے
ولــــو کــــان زاهـــدا (رحمٰن)

**ــــ کول** :ـ اص، مخالف کول، دښمن کول ـ

**ــــ کېدل** :ـ اص ،مخالف کېدل، دښمن کېدل ـ

**دُښـــمن دار** :ـ (دُښـــمن+دا+رْ) ،[پ، فـا : دښـــمن دار، اس ص، مـــذ ، وا ، ج : دښـمنداران (مـؤ، وا : دښـمنداره، ج : دښـمندارې] دښـمن لـرونکے، مخالف لرونکے ـ

**دُښـــمني** :ـ (دُ+ښ يـا خْ+م+نـيْ) [پ ،فـا : دښـــمني ،اس، مؤ] دښـــمني، مخالفت، دُښمني ـ

د دښمن په دښمنۍ مې خنـدا کېږي
لکـه شـمع د مقراض له خصومته (رحمٰن)

**ـــ پالل** :ـ اِص، دښمني ساتل، دښمني کول ـ
**ـــ پرېښول** :ـ اِص ،مخالفت پرېښول،صُلح کول ـ
**ـــ په بیعه اخستل** :ـ اِص ،په زور دښمني جوړول، خامخواه مخالفت کول ـ
**ـــ په دوستۍ بدلول** :ـ اِص، روغه کول ـ
**ـــ په سر اخستل** :ـ اِص ،مخالفت ته غاړه ایښودل ـ
**ـــ ترسره کول**:ـ اِص ، دښمني تر آخره رسول، دښمني باندې قائم پاتې کېدل ـ
**ـــ جوړېدل** :ـ اِص، دښمني جوړېدل، مخالفت جوړېدل ـ
**ـــ کول** :ـ اِص، دښمني کول ، مخالفت کول، دښمني کول ـ
**ـــ کېدل**:ـ اِص ، دښمني کېدل، مخالفت کېدل، دښمني کېدل ـ
**ګڼل** :ـ اِص، دښمني شمارل، مخالفت حسابول ـ

خو پښتنوتـــه کـه دا وائې دښمني ئې ګڼي
ګورې نه ټول ترې لرې تښتي دوزخي ئې ګڼي (پرېشان خټک)

**ـــ نه لاس نیول** :ـ اِص ، دښمني نۀ کول، دښمني ختمول ـ
**دښن** :ـ (دُ+ش یا خ+نْ)، [پ، فا : شمن اِس ،مذ ، وا ،ج : دښنۀ (مؤ ،وا : دُښنه، ج : دښنې] و - دښمن ـ
**دښنو** :ـ (دَ+شْ یا خْ+نُوْ) [اَف : پ (قاموس) اِس، مذ] و- دُښمن ـ
**دښنه** :ـ (دِ+شْ یاخْ+نَه)[پ، اِس ،مذ] دُښمن، دښمن ـ

پـرورش د نفـس پکـار نـۀ دے حمیـده
لــه دښنـــۀ سـره څـوک نـۀ کـا تــولاّ

**دُښني** :ـ (دُ+شْ یا خْ+نِيْ) [اَف : پ (قاموس) اِس، مؤ] و -دُښمني ـ
**ـــ کول** :ـ اِص ،و- دُښمني کول ـ
**ـــ کېدل** :ـ اِص، و- دښمني کېدل ـ
**دُعا** :ـ (دُ+عَا) [ع اِس، مؤ ،وا ، ج : دُعاګانې] غوښتنه، بخښنه غوښتل،مُراد پُوره کول، غوښتل ـ

بادشـــاهي د ګـــدایانو پـــه دُعـــا شـــي
زه رحمـان ځکـه بادشـاه یـم چـې ګداشـوم

**ـــ غوښتل**:ـ اِص ،(۱) دُعـا کـول، دالله پـاک نـه خېـر غوښـتل، د دُعـا غشـي ګذارول

لاس و پښې د خلقو نیسي دُعا غواړي
مـــیـــنې هـــسې منت بار کړو زما دل (رحمٰن)

(۲) چاته د دُعا کولو خواست کول ـ
**ـــ قبلېدل** :ـ اِص، مُراد تر سره کېدل، د خدا ے پاک فضل مُوندل ـ

زۀ رحمـــان د خپلـــه یـــاره هـــېڅ نـــه غـــواړم
کـــه قبولـــه خـــدا ے تـــه وي دُعـــا زمـــا

**ـــ کول** :ـ اِص ،و - دُعا غوښتل ـ

نه چا ختم نۀ دُعا ورپسې اُوکړه
که ئې اٰل که ئې عیال ووکه اولاد (رحمٰن)

**د دُعا غشي ګذارول** :ـ اِص، و- دُعا غوښتل ـ

هـر طَرف مې د دُعا غشي ګذار کړۀ
ولې یو هم داسې نۀ وو چې کار ګرشۀ (رحمٰن)

**دُعا سلام** :ـ (دُ+عـا+سَ+لاَ+مْ)، [پ ا ،ِس، مرکب] علیک سلیک، تلۀ راتله، ناسته پاسته، لیدۀ کاتۀ، دوستي، ملګرتیا ـ

شـرمـنده یـم پـر داخـپل دعا سلام کښې
بې سجـدې چې ئې خیال راشي سجده اوکړم (رحمت داوي)

**دُعاګو** :ـ (دُ+عـا+ګو) ،[فا ، اِس، ص ،مذ (مؤ، وا : دُعا ګویه ،ج : دُعا ګوئے] دُعا ګوئي ،دُعا کوونکے، دُعا غوښتُونکے، د بل خېر غوښتُونکے ـ

د رقیب خـــبرې ورېم د یـــار د پـــاره
دُعا ګوهم د نېکخوا هم د بد خواه یم (رحمٰن)

**دُعاګوئې** :ـ (دُ+عـا+ګو+ئې) [پ ،اِس، ص، مـذ (مـؤ، وا : دُعـا ګویـه، ج : دعـا ګوئې] و - دُعا ګو ـ
**دعائې خېر** :ـ (دُ+عا+ئې+خَ+يْ+رْ)[فا ، اِس، مرکب] د خېر دُعا ، ښۀ دُعا ـ
**ـــ کول** :ـ اِص ،د یو غُونډې یا جمعې د پاڅېدونه وړاندې د خېر دُعا غوښتل
**دعوت** :ـ (دَ+عْ+وَ+تْ) [ع، اِس، مـذ ، وا ، ج : دعوتُونـه] (۱) بلنـه ،د ډوډۍ د پـاره راغوښتل ـ(۲) مذهب ته رابلل ـ
**ـــ ته تلل** :ـ اِص ،د چا ډوډۍ ته ورتلل ـ
**ـــ ته غوښتل** :ـ اِص، څوک ډوډۍ ته رابلل،دعوت ورکول ـ
**ـــ کول** :ـ اِص، د چا د پاره د ډوډۍ بندوبست کول ـ
**ـــ منظورول** :ـ اِص، د چا ډوډۍ قبلول ـ
**ـــ ورکول** :ـ اِص ،و - دعوت ته راغوښتل ـ
**ـــ ورکېدل** :ـ اِص ،د ډوډۍ بلنه ورکېدل، ډوډۍ ته بللے کېدل ـ
**دعوت شیراز** :ـ (دَ+عْ+وَ+تْ+شِي+را+زْ)[فا ، اِس، ص، مـذ] ډېره ساده او تیـاره ډوډۍ، بې تکلفه ډوډۍ ـ
**دعوت ولیمه**:ـ (دَ+عْ+وَ+تْ+و+لِي+مَه) [پ ،اِس، ص ،مذ] د وادۀ ډوډۍ ـ
**دعوه** :ـ (دَ+عْ+وه)، [ع، اِس، مؤ ،وا ، ج : دعوې] مطالبه، غوښتنه، عرضي ـ

دعوه مه کړه په ناحقه خپل به ئې نۀ کړې
پـردے ښهر پردے ملک، پردے دیار (رحمٰن)

**ـــ پرېښول** :ـ اِص، د دعوې نه لاس په سر کېدل ـ

که دلبر په دا ښائست لاړۀ چمن ته
د خوبۍ دعوه به ګل د چمن پرېږدي (کامګار خټک)

**ـــ کول** :ـ اِص، عرضي کول، په څۀ څیز خپل حق ثابتول ـ

هر څوک چې دعوه په دا دنیا که د خپلوۍ
واړه بـــاطـــل وائـــي دنـــیا نۀ ده دهـیچا (رحمٰن)

**ـــ لرل** :ـ اِص ،حق زبادول، دعوه کول ـ
**ـــ په دعوه** :ـ اِص، په ثبوت سره، په وثوق سره ـ
**دعوېـدار** :ـ (دَ+عْ+وې+دا+رْ) [فـا ، اس ،ص، مـذ ، وا ، ج : دعوېـداران (مـؤ، وا :دعوېداره ،ج : دعوېدارې] مُدعي، دعوه لرونکے، دعوه ګیر ـ
**ـــ کېدل** :ـ اِص، په یو څیز خپله دعوه زبادول ـ
**دعوېدارې** :ـ (دَ+عْ+وې+دا+رِيْ) [فا ، اِس، مؤ] دعوه لرنه، دعوه ګیري ـ
**دعـوه ګیـر** :ـ (دعـوي+ګيِ+رْ)[پ، اِس، ص، مـذ ، وا (مـؤ، وا : دعـوه ګیـره، ج : دعوه ګیره] و - دعوېدار ـ
**دعوه ګیري** :ـ (دعوي+ګِي+رِيْ) [پ، اِس ،مؤ] و - دعوېداري ـ
**دغا** :ـ (دَ+غا) [فا ، اِس، مؤ] دوکه، درغلي، فرېب، مکر، بې ایماني ـ

هره ورځ د دې فاني دنیا د پاره
زرفـتـنې الابـلا دغـا دغل کړې (خوشحال)

**ـــ کول** :ـ اِص، دوکه کول، ټګي کول، فرېب کول، بې ایماني کول ـ
**دغا ـ کېدل**:ـ اِص ،ټګي کېدل، فرېب کېدل، درغلي کېدل،بې ایماني کېدل ـ
**دغا باز** :ـ (د+غا+با+زْ) [فا ، اِس، ص، مذ ،وا ، ج : دغابازان (مؤ ،وا : دغابازه ، ج : دغابازې] دوکه مار، دوکه کوونکے، ټګ، چلولي، درغل،فرېبي، مکار
**دغابازي** :ـ (دغا+با+زِيْ) [فا ، اِس ،مؤ] ټګي برګي، مکاري، چل، فرېب، دوکه بازي ،دوکه ماري، درغل ـ
**دغځے** :ـ (د+غْ+دْ+زَ+ے) [اَف :پ (قاموس) اِس، مذ ،وا ، ج : دغځې] وچ شوے

لاس، معذور لاس، بېکاره لاس.
**ـــ کېدل** :ـ (اَف) اص ،لاس وچېدل، لاس بېکاره کېدل، لس معذوره کېدل.
**دَغ دَغ** :ـ (دَ+غْ+دَ+غْ) [پ (مهه) اس] و - دزن زتي.
**دغدغه** :ـ (دَ+غْ+دَ+غَه) [پ ،ص، مؤ، وا، ج : دغدغې] (۱) دبدبه، شان، رُعب داب.(۲) ویره، ډار.(۳) هنگامه، شور ژوږ.
**ـــ ختل** :ـ اص ،تېنگ ختل، دبدبه اوشان ښکاره کېدل. نوم مشهورېدل.
**په زړهٔ کښې دغدغه لرل** :ـ اص، په زړهٔ کښې ویره لرل.
**دغدُوغ** :ـ (دَ+غْ+دُو+غْ) [پ ،اس ،مذ] چلول، اَنې بانې،مکر.
**ـــ کول** :ـ اص، چلول کول، اَنې بانې کول.
**دغـدوغې** :ـ (دَ+غْ+دُوْ+غـې) [اَف : پ (قـاموس) اس ،مـذ، وا، ج : دغـدُوغې] چلولې، مکار، بانې گر.
**دغـددُوور** :ـ (دَ+غْ+دَ+وُو+رْ) [اَف : پ(قـاموس) اس، مـذ] عقـار، یو قسم خـاص مارغهٔ چې پرېره یا تاج لري.
**دغږغې** :ـ (دَ+غْ+ږ+غـې) [اَف : پ (قـاموس) اس ،مـذ] (۱) د نمر شُغلې.(۲) هغـه باران چې غټ څاڅکي پکښې ورېږي، دغټو څاڅکو باران.
**دغسې** :ـ (دَ+غْ+سې)، [پ ،حرف] دغه شان،دغه رنگ،داسې.
**دغل** :ـ (دَ+غَ+لْ) [پ، اس ،مذ] درغل،مکار.
**دغلته** :ـ (د+غَ+لْ+ته) [پ ،حرف] دغه ځاے،هلته.
**دغمه** :ـ (دُ+غْ+مَه)[پ، اس ،مؤ، وا، ج : دغمې]تُغمه، د وهلو ټکولو نخښه

ستـا په داغ راغـلم لـه موره
خداے مې مه کړه دغمه نوره (خوشحال)

**دغو** :ـ (دَ+غو) ، [پ اشاره] دوي،دغه خلقو، دغوئې.
**دغومره** :ـ (د+غو+مْ+ره)، [پ ، ص] دُومره، دې قدر.
**دغونه** :ـ (دَ+غو+نه) [پ، ص] (۱) دغه هومره.(۲) ددیونه.
**دغوي** :ـ (د+غُو+ي) [پ ، ضمیر] و- دغو.
**دغه** :ـ (دَ+غَه) [پ ، اشاره] دا ،هم دا.

ترقیامته دغه لس او دغه شل دي
پُوره نهٔ کړو هیڅوا شمار د دې دنیا (رحمٰن)

**دغه هغه** :ـ (دَ+غه+هَ+غه)[پ ، کلمه] هغه دغه.
**دف** :ـ (دَ+فْ) [فا، اس ،مذ ،وا، ج : دفُونه] تمبل، داریال.
**ـــ وهل** :ـ اص ،تمبل ږغول.
**دفتـر** :ـ (دَ+فْ+تَ+رْ)، [فـا، اس، مـذ ، وا، ج : دفترُونـه] (۱) د حسـاب کتـاب کاغذونه،دکچرې کاغذونه.

که دفتر دخپل قسمت مې په خپل لاس وے
مابـه سـتـالـه غـمـه وران کړهٔ دا دفـتربیا (رحمٰن)

(۲) هغـه کوټـه چـې د سـرکاري اهلکـار پکښـې کـارکوي.(۳) د وتـر، جائېداد.
**دفتـري** :ـ (دَ+فْ+ت+رِيْ)، [پ، اس ،مـذ، وا، ج : دفتریـان] دفتـر سـمووُنکے، د دفترسامان نگران.
**دفعه**:ـ (دَ+فْ+عَـه) [ع، اس، مؤ، وا، ج : دفعې] د قـانون یـو مشـق، یـوه قـانوني خبره
**ـــ لگول** :ـ اص، په چا ملزم یو جرم لگول.
**ماتېدل** :ـ اص، لگولے شوے قانوني جرم غلط ثابتېدل.
**دفعه داري** :ـ (دَ+فْ+عه+دا+رِيْ)[پ، اس، مؤ] ددفعـه دار منصب، د دفعـه دار کار
**دفعه دار** :ـ (دَ+فْ+عَه+دا+رْ) ، [فا، اس، ص ،مذ ،وا، ج : دفعه داران] (۱) حوالدار درسالې هغه عهده دار چې دري فیتې ئې په مټ لگولې وي.

(۲) د څوکیدارانو مشر.
**دفـن** :ـ (دَ+فَ+نْ)[ع، ص، مـذ (مؤ ،وا : دفعـه ،ج : دفنې] ښخ، پـه مزکـه کښې دربلے.
**ـــ کول** :ـ اص، ښخول، په مزکه کښې دربل.
**ـــ کېدل** :ـ اص ،ښخېدل، په مزکه کښې دربلے کېدل.
**دفینه** :ـ (دَ+فِي+نَه) [فا، اس، مؤ، وا، ج : دفینې] ښخه خزانه ،دفن کړے شوے مال
**دق** :ـ (د+قْ)، [ع ، اس] نـرے رنـځ، زړه تبـه، دک دے مـرض تـه د مرضـونو بادشاه وائي ،پخوا لاعلاجه مرض شمارېدلو خو د سائنس په برکت او دا مرض قابل علاج دے.
**ـــ کېدل** :ـ اص ،و - دق کېدل.
**ـــ لگېدل** :ـ اص ،و - دق کېدل.
**په دق اخته کېدل** :ـ اص ،په نري رنځ بیمارېدل.
**دقیـانوس** :ـ (دَ+قْ+یـا+نُوْ+سْ) [ع، اس، معرفـه، مـذ] د ایران یـو پخـوانے ظـالم بادشـاه چـې د هغـه د ویـرې اصـحاب کهـف خپـل ښـار پرېښـولے وو او د اُردن سره نژدې په یو غار کښې پټ شوي وو.

ودانې ئې همه واړه ویراني ده
راشه اُوگوره مانړے د دقیانوس (رحمن)

**دقیانُوســــي** :ـ (دَ+قْ+یا+نُوْ+ســــيْ) [ع ،اس، ص] د دقیـــانوس د زمـــانې، ددقیانوس د وختو، پخوانے، زوړ.
**دقیقه** :ـ (دَ+قِي+قَه) [ع ،اس ،مؤ ،وا، ج : دقیقې] درنگ، لږوخت، دکیکه یـوه دقـیـقه دسـتادیـادو په مانـهٔ تېرېږي

دروح نه زیاته ستانشه زما په وینو کښې ده (پریشان ختیک)

**دک** :ـ (دَ+کْ)، [اَف : پ (قـاموس) اس، مـذ] (۱) علـت.(۲) حېـران، اَریـان، اکثـر خلقا اک دک وائي.
**دک** :ـ (د+کْ) [پ ،ع ،دق ،اس] و - دق.
**دُکان** :ـ (دُ+کا+نْ) [پ، اس ،مذ ،وا ،ج : دُکانُونـه] اټې، هټې، هټېدوکـان، د سُود سودا خرڅولو ځاے.

ماوې سر په نقصانُونو کښې سستي ده
ځکه غل وهي دکان د پهره دار سست (علي خان)

**دُکانـ اچول** :ـ اص، دُکان خلاصول، دُکان شروع کول، دُکان جوړول.
**ـــ اخستل** :ـ اص ،دُکان کول، دُکان په بیعه اخستل.
**ـــ بندول** :ـ اص ،هټئ بندول، دُکان پورې کول.
**بندېدل** :ـ اص هټې بندېدل، دُکان پورې کېدل.
**ـــ پرېښول** :ـ اص ،هټې پرېښول.
**ـــ پورې کول** :ـ اص ،و - دُکان بندول.
**ـــ پورې کېدل** :ـ اص ،و - دُکان بندېدل.
**ـــ جوړول** :ـ اص ،و - دُکان اچول.
**ـــ چلول** :ـ اص، هټې چلول، هټې کول.
**ـــ چلېدل** :ـ اص ،هټې چلېدل، هټې کېدل.
**ـــ خلاصول** :ـ اص، (۱) دُکان شروع کول.(۲) دُکان لرې کول.
**ـــ گرمول** :ـ اص، خپل عزت او مینه زیاتول ،توددُکان چلول.

د وفا مال و متاع پکښې هېڅ نشته
تش په توره گرموي ښکلي دُکان خپل (حمید)

**توددُکان چلول** :ـ اص ،و - دُوکان گرمول.
**دکانـدار** :ـ (دُ+کـا+نْ+دا+رْ) [فـا ،اس ص ،مـذ، وا ،ج : دُکانـدران (مـؤ، وا : دُکانداره ،ج : دُکاندارې]دوکاندار، دُکان لرؤنکے، هټې وال.

**دکانداري** :- (دُ+کا+نْ+دا+رِي) [فا ، اس ،مؤ] (۱) دوکانداري، د دُکان کولو کسب (۲) ځوله ورتوب، چالاکي ۔

**ـــ کول**:- اص ،(۱) د دُکان کارکول (۲) خولهٔ ورتوب کول، چالاکي کول ۔

**دکازے** :- (دَ+کا+زے) [پ، اس ،مذ] دُکازه، د مرزوجال ۔

**دکــن** :- (دَ+کَ+نْ) [پ، ه، د، کهـن، اس، معرفـه، مـذ] (۱) سُـهیل (۲) د هندوستان په سوېلي حصه کښې یوه مشهوره علاقه ۔

**دکی** :- (د+ک+ئی) [اَف : پ (قاموس) اس ،مؤ] دغوا لوېشلو لوښے ۔

**دکیکه** :- (دَ+کي+کَه) [اَف : پ (قاموس)، اس ،مؤ ،وا ، ج : دکیکې] و - دقیقه

**دکیکه گر** :- (دَ+کي+کَه+گَ+رْ) [اَف : پ (قاموس) ،اس ،مذ] د گړۍ ستن ۔

**دگ** :- (دَ+گْ) [پ ،اس ،مذ ،وا] (۱) کوټے، کوږے، هغه لرگے چې قصابان غوښه پرې پرې کو او کټ کوي، دگے (۲) بې وفائي (۳) گل سرے (۴) هغه خبره چې په زړهٔ کښې خو وي خو څوک ئې ظاهروي نه (۵) لوئې غټ مونډ يا تنه، دگائے ۔

**دگائي** :- (دَ+گا+ئي) [پ (وز) اس، مذ] لوئي غټ مُونډ يا تنه، دگ ۔

**دگ گلے** :- (دَ+گْ+گَ+لے) [اَف : پ (قاموس) اس، مذ] د هلکانو يوه لوبه ۔

**ـــ کول** :- (اَف) اص، د ماشومانو د دگ گلي لوبه کول ۔

**دگـل** :- (د+گَ+لْ) [پ ،اس، مـذ] (۱) منـت زاري (۲) دا ټکـے د رټـل سـره د سگُونډلو راسگُونډلو دپاره استعمالېږي، لکه رټل د گل ۔

**دگلے** :- (د+گَ+لے) [اَف : پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج : دگلي ،مؤ : دگلې] منت بار، د احسان لاندې ۔

ځيرې گرېوان د سرو نوکونو په رينې گندمه
دگلے شُـونـډې ستا پـه ژبـه گبـينې گندمه (غلام سرور خان مومند)

**دگن** :- (د+گْ+گَ+نْ) [پ (ب،خ، ص] پېښه نيولے، اريان ۔

**ـــ کېدل** :- اص ،پېښه نيولے کېدل، اريانېدل ۔

**دگلي** :- (د+گَ+لي) [اَف : پ (قاموس) اس، مؤ] منت باري، احسان اخستند ۔

**دگـه دگـه تـي** :- (د+گه+دگـه+تي) [اَف : پ (قـاموس) اس ص] د بـزو يـا چېلـو وغېره د شړلو د پاره د اټکي وئېلے شي ۔

**دگے** :- (دَ+گے) [پ، اس ،مذ، وا، ج : دگي، دگيان] ،و-دگ (۱)

**دل** :- (دَ+لْ) [پ ، ص] (۱) عبث، ضائع، برباد ـ (۲) نيم نيمگړے مېده شوے ۔

(۳) دليه غنم چې نيم نيمگړي مېده کړي او بيا ئې پاخهٔ کړي ۔

**ـــ تلل** :- اص ،عبث تلل، ضائع کېدل ۔

**ـــ کول** :- اص ،(۱) بربادول، ضائع کول (۲) مېده کول ۔

**دَلـ کېدل** :- اص ،(۱) بربادېدل، ضائع کېدل (۲) مېده کېدل ۔

**دل** :- (د+لْ) [فا ،اس ،مذ ] زړهٔ، رهٔ ۔

زهٔ حميـد ئـې بېهـوده دارُو درمـان کـړم
چـې د عشـق پـه رنـځ رنځـور دے زمـا دل

**له دله هېرول** :-اص، ياد نهٔ ساتل ۔

**له دله هېرېدل**:- اص ،د زړهٔ نه وتل ،په زړهٔ کښې ياد نهٔ پاتې کېدل ۔

چـې ئـې نـهٔ پـه وفـا يادنـهٔ پـه جفـا وي
ځکـه رحمـان د هغـه يـار لـه دلـه هېرشـه

**دل آرام** :- (د+لْ+آ+را+مْ) [فـا ، اس ،ص، مـذ ، (مـؤ، وا، ج : دل آرامـه ،ج : دل آرامې] زړهٔ ته آرام رسوونکې معشوقه ۔

په طلب د دل آرام کښې
مـــاونـهٔ لـيدهٔ آرام (رحمٰن)

**دا ازار** :- (د+لْ+آ+زا+رْ)، [فا ، اس، ص، مذ ، (مؤ ،وا ،دل ازاره ،ج : دل ازارې] زړهٔ ازاروونکے، خفه کوونکے ۔

دل آزار کـه دل ازاشي مانه نهٔ شي
حېف خودا دے چې دلدارشي دل ازار (رحمٰن)

**دل ازاري** :- (د+لْ+آ+زا+رِي) [فا ، اس، مؤ] زړهٔ خفه کَونه، زړهٔ آزارونه ۔

د همه بدۍ وسردل ازاري ده
هُمره جور ظلم مه کوه زاري ده (عبدالقادرختک)

**ـــ کول** :- اص ،زړهٔ آزارول ۔

که هـزار ځلـه تقوه پرهېزگاري کړې
ښه دې نشته چې مدام دل ازاري کړې (عبدالرحيم هوتک)

**دلاسه** :- (دَ+لا+سَه) [پ، اس ،مؤ ،وا ،ج : دلاسې] تسلّه، ډاډگېرنه ۔

**ـــ کول** :- اص ،تسله ورکول، ډاډگېرنه کول، دلاسه ورکول ۔

**ـــ کېدل** :- اص ،ډاډگېرنه کېدل، تسله کېدل ۔

**ـــ ورکول** :- اص ،و - دلاسه کول ۔

**دلال** :- (دَ+لا+لْ) ،[پ، اس، مذ، وا، ج : دلالان (مؤ، وا : دلاله ،ج : دلالې]

(۱) د دؤو تنو په مېنځ کښې سودا جوړوونکے، اړهتي ۔

مخ هغه چې ئې ستائېنه درست عالم کا
نـهٔ هـغه چـې لـکه سـتائي دلال خر (خوشحال)

(۲) بړوے ۔

**ـــ کېدل** :- اص، دلال جوړېدل ۔

دهاتيانو سوداگر وي
بيا د گاؤ خردلال شي (رحمٰن)

**دلالي** :- (دَ+لا+لِي)، [پ ،اس ،مؤ] (۱) د دلالۍ کار، اړهت ۔

دلالۍ ته مې يوسف تر خواشاکېږي
پـه بازار چې ئې د حُسن خريدارشم (حميد)

(۲) بړواتوب ۔

**ـــ کول** :- اص ،(۱) دلالۍ کار کول، اَړت کول (۲) بړواتوب کول ۔

**دلاور** :- (د+لا+وَ+رْ) ، [فا ، اس، ص، مذ] (۱) زړهٔ ور ،بهادر ۔

دغــه ځــاے دبــې دلاتــو دے رحمٰنــه
د دلبــرو پــه کوځــه دلاور مــه شــه

(۲) يو عام نُوم ۔

**دلاورتوب** :- (دلاور+تو+بْ) ،[پ ،اس ،مذ] دلاوري، زړهٔ ورتوب، بهادري ۔

**دلاوري** :- (د+لا+وَ+رِي) ، [پ ،اس ،مؤ] و - دلاورتوب ۔

**دلبار** :- (دَ+لْ+با+ر) ، [پ ،اس، مذ ، وا ، ج : دلبارُونه] و- دربار ۔

چُونه گچودلبارو کښې چاته کښته کښيناستے شې؟
د وښـــو خـــپله جـونگړه د ختک سرې دلبار دے (پرېشان ختک)

**دلباري** :- (دَ+لْ+با+رِي) ، [پ، اس، ص ،مذ] و - درباري ۔

**دلبـــر** :- (د+لْ+ب+رْ) ، [پ، اس، ص، مـــذ (مؤ ،وا : دلبـــرې] آشـــنا، معشوق، يار ۔

د غمزے طاقت دې نهٔ لرم دلبره
زهٔ هـــرگوره ډېرعاجزيم ناتوانه (خواجه محمد بنگش)

**ـــ غوښتل** :- اص، يار لټول ۔

غواصـان که گوهر غواړي گوهر دادے
بــې دلان کــه دلبر غواړي دلبر دا دے (رحمٰن)

**دلبري** :- (د+لْ+ب+رِي) ، [پ، اس، مؤ] آشنائي، ياري، د زړهٔ ساتنه ۔

که هر څو دے دلبري او دلجوئي کا
ناديده که دولتمند شي مه ئې وينه (علي خان)

**دلبه** :- (دَ+لْ+بَه) [پ ،اس ،مؤ] د باز يـا ښکاري مارغـانو د رابللو دپـاره غوښه يا چرگوټے نيول ۔

**دلته** :- (د+لْ+تهَ) [پ، ص] دلته، دې ځاے، دې ځاے کښې ۔

دلته وُچ سکړک نعمت شي
خونديې زيات ډېر برکت شي (پُردل خټک)

**دلته** :- (دَ+لَ+تَه) [اپ، ص] و- دلته -

**دلدار** :- (دِ+لْ+دا+رْ) [فا، اس ص، مذ، وا، ج: دلداران (مؤ، وا، دلداره، ج: دلداري)محبوب، معشوق، يار -

هر چې نۀ وي خوار وزار
پـه طلب د خپل دلدار (رحمٰن)

**دلداري** :- (دِ+لْ+دا+رِيْ) [فا، اس، مؤ] ياري، د زړۀ ساتنه -

دلداري لکه غنچه د هر شبنم کړم
تل د بل په اوښيو ترزما استين دے (کاظم خان شيدا)

**دلدل** :- (دَ+لْ+دَ+لْ)[ه، اس، مذ]بوخته، چيکړي، ختي، جبه-

چې سرې هاتيان اوښان پکښې ډوبيږي
داد عـشق د ختو څۀ عظيم دلدل دے (سکندر خان خټک)

**دلـدل** :- (دَ+لْ+دَ+لْ)، [اپ، ع، دُلـدُل، اس، مـذ] هغـه تـوربخن سپين آس چې د اسکندرئے حاکم مقوقش حضرت محمد مصطفى صلي الله عليه وسلم ته د نذرانې په توګه لېږلے وو او هغوي حضرت علي کرم الله وجهه ته ورکړے وو

**دل سوز** :- (دِ+لْ+سو+زْ)، [فا، اس، ص، مذ (مؤ، وا : دلسوزه ج : دلسوزې] (۱) زړۀ سواندے، زړۀ سو ځو وُنکے-(۲) د پښتو د يو شاعر تخلص -

**دل سوزي** :- (دِ+لْ+سو+زِيْ) ، [فا، اس ،مؤ] زړۀ سوے، رحم -

دِل سـوزي بـه دې په نور وګړي څۀ شي
چې له ما غوندې مخلصه سره جنګ کړې (رحمٰن)

**ـــ کول** :- اِص ،زړۀ سوځو لم، رحم کول -

هر سړے به دل سوزي راباندې وکا
کـه خـبر شي پـه افسوس چغار زما (عبدالعظيم)

**ـــ کېدل** :- اِص، زړۀ سوځېدل، رحم راتلل -

هېڅ لـه خپلې خوارۍ مه ژاړه رقيب ته
دل سـوزي پـه مسلمان د کافر نۀ شي (حميد)

**دل شـوے** :- (دْ+لْ+شْ+وَ+ے)، [اپ، مـف ،مـذ ،وا ، ج : دل شـوي، مـؤ : دل شوې]دلبدلے، دل کړے، مبده کړے ،غټ وورہ کړے -

**دل کړے**:- (دَ+لْ+ک+ړَ+ے) [اپ ،مف ،مذ، وا، ج : دل کړي ،مؤ : دل کړې] و - دل شوے-

**دل ګـذاري** :- (دَ+لْ+ګَ+زا+رِيْ) [اپ ، ص] (۱) دل شـوے، مـات ګـډ-(۲) وهـل ټکول، ماتول-

**ـــ کول** :- اِص، (۱) مات ګډ کول-(۲) وهل ټکول کول -

**ـــ کېدل** :- اِص ،(۱) مات ګډ کېدل-(۲) وهل ټکول کېدل -

**دلګيـر** :- (دِ+لْ+ګي+رْ) [اپ، اس، ص، مـذ (مـؤ، وا : دلګيـره ،ج : دلګيـرې] خفه، زهير، غمژن -

واقع شوے دے بيا کُوم تقصير له ما
چـې تـېرېـږي دلربا دلګير له ما (حميد)

**ـــ کېدل** :- اِص ،زهيرېدل، خفه کېدل، غمژن کېدل، دلګيرېدل -

که د زړۀ له غمه اُوچوي دلګير مه شه
کاتـبان کا پـه چـُـول قـلم تـازه (رحمٰن)

**ـــ ګرځېدل** :- اِص، خفه ګرځېدل، غمژن ګرځېدل، زهير ګرځېدل -

هر سړے چې کان د غم په مخکښې ويني
له هـغۀ غـمـه لانـن ګـرځي دلـګير (رحمٰن)

**دلګيري** :- (دِ+لْ+ګي+رِيْ)، [اپ ،اس ،مؤ] خفګان، خفه توب -

دلګيري او خوشحالي که په خپل لاس وے
په خپل لاس به خپسره هېڅوک دلګير نۀ کا (رحمٰن)

**دلل** :- (دَ+لِ+لْ)، [اَف : پ (قاموس)اس، مذ] خواري، نېستي -

**دِلي**:- (د+ل+لِيْ) [اپ ،ه : دهلي، اِس معرفه] ډِلے، د هندوستان صدر مقام، دهلي

**دلن** :- (دَ+لَ+نْ) ،[اپ ،اس ،مذ] (۱) جبه بوخته -

د تازلفې پېچ و خم خو دغه ځاے دي
چې سېلاب د ګمبيلې پـه دلن تېر شي (عبدالرحيم مجذوب)

(۲) شګے-(۳) د کوهاټ نه مخکښې علاقه هنګو کښې د خټکو يو کلے -

**دلنے** :- (دَ+لَ+نے)[اپ ،اس ،مذ] بُوره، چاڼ -

**دلول** :- (دَ+ل+و+لْ) ،[اپ، مص مت] دل کول، مېده کول، غټ ورول -

څو عالَم ئې دل کړو لابه څو عالم دلېږي
(خوشحال)

**دلولے** :- (دَ+لْ+و+لےَ) [اپ، مف، مذ ،وا ،ج : دلولي ،(مؤا : دلولې] دل شوے، مېده کړے، غټ وورہ کړے -

**دُلون** :- (دُ+لُو+نْ) [اَف : پ (قاموس) اس، مذ] يو قسم بُوټے چې پـه شـولو کښې راټُوکېږي او شولو فصل ته زيات نقصان رَسوي -

**دلونه** :- (دَ+ل+و+نَه)، [اپ ، حمص] دل کَونه، مېده کونه، غټ ورَونه -

**دلوونکے** :- (دَ+ل+وُو+نْ+کے) ، [اپ، فـاع، مـذ، وا ،ج : دلـوُونکي، مـؤ : دلوونکې] دل کوونکے، مېده کوونکے، غټ ورونکے -

**دله** :- (د+له)، [اپ ، حرف] درله ، تاله، تاته -

**دله** :- (د+لَه) [اپ، اس، ص ،مذ ،وا ، ج : دله ګان] (۱) بې شرمه، بې غېرته، بې عزته(۲) برِوا، دلال -

**دله توب** :- (د+له+تو+بْ) [اپ ،اس، مذ] بې غېرتي، دله ګيري -

**ـــ کول** :- اِص ،دله ګيري کول، دلالي کول -

**دله خپک** :- (دَ+لَه+خ+پ+کْ) ، [اَف : پ (قاموس) اس، مذ،] سپين رنګے شان ترورئے يا لومبړه چې خلق ئې د څرمنې د پاره ښکار کوي -

**دله ګک** :- (دَ+لَه+ګ+کْ) [اَف : پ (قاموس) اس، مذ]د مرې بلغم -

**دله ګيري** :- (دله+ګي+رِيْ) [اپ ،اس، مؤ] و - دله توب -

**ـــ کول** :- اِص، و- دله توب کول -

**دلۍ** :- (دَ+لَ+ئی) ، [اپ، اس، مـؤ] (۱) انبار، د غلې د ګېډيو ډېرے ،ټوپ- (۲) ډېر زيات -

**ـــ جوړول** :- اِص، انبار جوړول، ټوپ جوړول، دلۍ کول، دلۍ وهل -

**ـــ دلۍ** :- اِص ،انبار انبار، ډير زيات، ډېرې ډېرې -

دې دلۍ دلۍ غمونه
بېقراره سوي زړونه (پُردل خټک)

**ـــ کول** :- اِص، و - دلۍ جوړول -

**ـــ کېدل** :- اِص، انبار جوړېدل، ټوپ کېدل -

**ـــ وهل** :- اِص، و - دلۍ جوړول -

**دلي** :- (د+لِي) [اپ ، حرف] دلته، ديلې، دلې،دلېته -

نۀ دلې شوې نۀ هورې شوې
تر مېنځ ډوب شوې مذبذب (رحمٰن)

**دلياچ** :- (دَ+ل+يا+چْ) [اپ (يوسف) اس، مذ] د مکان بهرنۍ چارديواري -

**دلېته** :- (د+لې+تَه)، [اپ ، حرف] و - دلې -

**دلبدل** :- (دَ+لې+د+لْ) [اپ ،مص لا] دل کېدل، مېده کېدل، غټ وورېدل -

**دلبدلے** :- (دَ+لې+د+لےَ) ، [اپ ،مف ،مذ ،وا ،ج : دلبدلي، مؤ : دلبدلې]دل

شوے، دل کړے، مېده کړے ،غټ وور شوے ۔

**دلبدنه** :۔ (دَ+لې+د+نهَ) [پ ، حمص] دل کېدنه، مېده کېدنه، غټ وورېدنه.

**دلبدُونکے** :۔ (دَ+لے+دُو+نْ+کےَ) ،[پ ،مف، مذ ،وا، ج: دلبدُونکي، مؤ : دلبدُونکې] دل کېدُونکے، مېده کېدونکے، غټ ورېدُونکے ۔

**دلے دورې** :۔ (دَ+لے+دُو+رې)، [پ ، ص] (۱) دلته هلته، هُورته هيشته (۲) معمولي۔(۳) اني باني ۔

**ـــ کول** :۔اص، (۱) آني باني کول(۲) څوک اخوا دېخوا کول، د ځاے نه لرې کول

**ـــ کېدل** :۔اص (۱) اني باني کېدل۔(۲) اخوا دېخوا کېدل ،د ځاے نه لرې کېدل۔

**دلبر** :۔ (دَ+لې+رْ)[ فا، اس ، مذ، وا، ج : دلبران (مؤ ،وا : دلبره ، ج : دلبرې )] زړه ور

لرې لرې اُوبۀ ټولې شي ملک وران کړي
پـه لـړ جبـر چـېرې نۀ شي دلبر ګوره (حميد)

**دليل** :۔ (د+ل +يْ+لْ ، [ع، اس، مذ، وا، ج : دليلُونه] (۱) ثبوت، شهادت ۔

کېفيت ئې موندے نۀ شي
پـه دلـيل او پـه بُرهان (رحمٰن)

(۲) بحث، حُجت ۔

**ـــ پېش کول** :۔اص، ثبوت وړاندې کول، دليل راوړل، دليل ورکول ۔

**ـــ راوړل** :۔اص، و - دليل پېش کول ۔

**ـــ نۀ منل** :۔اص ،ثبوت نه منل، څۀ خبره منلو ته نۀ تيارېدل ۔

**ـــ ورکول** :۔اص، و - دليل پېش کول ۔

**ـــ بې دليله** :۔اص، بې ثبوته ۔

**په دليل سره** :۔اص ،د ثبوت سره ۔

**دليه** :۔ (دَ+لْ+يَهَ) ، [پ ،ه : دليا ،اس، مؤ،دل، دل کړې غله، اوګره شان، غنم چې نيم نيم ګړې مېده کړې او بيائې پاخۀ کړې ۔

**دم** :۔ (دَ+مْ)،[ع ،اس، مذ] وينه، قرباني ۔

**ـــ ورکول**:۔اص ،د حج په موقعه چې په چا قرباني فرض شي هغې ته دم ورکول وائي ۔

**دم** :۔ (دَ+مْ)، [فا، اس ،مذ، وا، ج : دمُونه] (۱) ساه ، نفس۔

چې له دم سره مې کښته پورته ګرځي
تۀ په ما باندې دا چارې په کُوم دم کړې (خوشحال)

(۲) ساعت، وخت، لحظه ۔

چې د تنګ ګوهر مې مات شو دواړه سترګې
پـه ژړا نـۀ کـړې يـو دم بـې نـمه مـا (خوشحال)

(۳) ژوند، روح، ځان ۔

همېشه دې زما سر او ستا قدم وي
تـر هغۀ ساعته پورې څومې دم وي (رحمٰن)

(۴) افسون، منتر، چُف، اُوده۔

ستا د حُسن مار چې ئې اوخوړي نۀ رغېږي
کـه بـې تـا پـه ځـان پُوکي هزار دمُونه (رحمٰن)

(۵) د چيلم کش۔(۴) زور، طاقت، توان۔(۷) لوئي همت، لويه حوصله(۸) ځيني پخکړے چې تر نيمه پورې پوخ کړے شي او بيا بـه نرې اور کښېښودے شي او سر پوښ پرې بنۀ کلک ورباندې کېږدي۔(۹) دُعا ۔

**ـــ اچول** :۔اص ، (۱) دم کول، دم پُوکل، دم چُف کول، دم فُوکول، دم لوستل۔ (۲) څـوک د خپـل اثـر لانـدې راوسـتل ،خبـره منلـو تـه تيـارول۔ (۳) تېرويستل، تېرباسل، ټګېيل۔

**ـــ اچېدل** :۔اص ، دم فُو کېدل، دم چُف کېدل، دم پُو کېدل ۔

**ـــ اخستل** :۔اص ، (۱) ساه اخستل۔(۲) د دم چُف، اجازه اخستل ۔

**ـــ پاڅول** :۔اص، د کوډو تعويذونو اثر ختمول ۔

**ـــ پخول** :۔اص، اجازه پخول ۔

**ـــ پخېدل** :۔اص ، اجازه پخېدل ۔

**ـــ پرې نۀ چلېدل**:۔اص، (۱) د دم اثر نۀ کېدل۔(۲) څۀ خبره منلوته نۀ تيارېدل ۔

**ـــ پُوکل** :۔اص ، و - دم اچول ۔

**ـــ په خود** :۔اص، په هوش کښې ۔

لـه نـاکس سـره مازغـۀ مـه خـوره حميـده
دم پـه خودشـه د خپـل فکـر پـه تـال زانګـه

**ـــ په خود کېدل** :۔اص ،(۱) په هوش کښې راتلل، سترګې غړول۔(۲) عقل سر له راتلل ۔

**ـــ په دستې** :۔اص، سمدستي، فوري ،لاس په لاس ۔

**ـــ په دم** :۔اص ، ساعت په ساعت، وخت په وخت ،ګړی په ګړی ۔

دا چې دم په دم زياتېږي زما مينه
کوُم يو حد ته به رسېږي زما مينه (پرېشان خټک)

**ـــ تر دمه** :۔اص ،ساعت په ساعت، ګړی په ګړی ۔

يخ صورت مې دم تر دمه ويلې کېږي
پـه علاج ئې ګهې اورګهې اوبـۀ ورم (مرزا خان انصاري)

**ـــ چُف کول** :۔اص ،و - دم اچول ۔

**ـــ ختل** :۔اص ،ساه ختل، مړکېدل ۔

کـه لـه ډېـره غـمه دم د چا ختے
زۀ به مړومه پـه عشق کښې لړغونے (رحمٰن)

**ـــ دُعا** :۔اص ، دُعا، دم درود ۔

دم دُعـا تـوره تـعويـذ ستا نې رويُـونـه
چې په هېڅ کښې مونده نۀ شي هسې شے دے (خوشحال)

**ـــ راکښل** :۔اص، (۱) د چيلم کش راکښل۔(۲) ساه بندول ۔

د دنيـا لـه اهلـه اوتښـته خوشـدله
لـرې بيارتـه يـک تنهـا پـټ دم را کـاږه

**ـــ زده کول** :۔اص ،اجازه اخستل، د دم چُف چل زده کول ۔

**ـــ زده کېدل** :۔اص ، اجازه اخستل کېدل، د دم چُف چل زده کېدل ۔

**ـــ زده کېدل** :۔اص، اجازه اخستلے کېدل، د دم چُف چل زده کېدل ۔

**ـــ فُوکېدل** :۔اص، و - دم اچېدل ۔

بيا چې دم د محبت رابـانـدې فُوشۀ
هغه دم مې د لاسونو پښو دم اوخوت (علي خان)

**ـــ قدم** :۔اص، خپل ځان ۔

دم قدم دوئې د ناکس له دره ژغوري
دا چې ګرځي لېوني تل په صحرا کښې (حميد)

**ـــ کښېناستل** :۔اص ،غلے کښېناستل، ببخي چپ کېدل ۔

**ـــ کول** :۔اص ،(۱) و - دم اچول۔(۲) کټوی په نرې اور پوره پخول ۔

**ـــ لانـدې راوسـتل** :۔اص ،(۱) اجازه لاندې راوستل۔(۲) د زهرويا وشو اثر کمول۔(۳) د خپل اثر لاندې راوستل ۔

**ـــ لاندې کول** :۔اص ،د اجازې چل زده کول، د دم چُف چل زده کول ۔

**ـــ لرل** :۔اص ،زياته حوصله لرل ۔

**ـــ لګول** :۔اص، د چيلم لُوګے راکښل ۔

**ـــ لګېدل** :۔اص، د دم اثر کېدل ۔

هېڅ د دم وربانـدې نـه لګـي ناصـحه
دا حميـد بـلا وهلـې مـلا مـه شـه

ــــ **لوستل** :ـ اِص، و - دم اچول ـ

چې پـه ما د صبر دم لولي چُف چف کا
ګـويـا تـنـدر پـه پُـو کلو سـرَوي (حميد)

ــــ **منـل** :ـ اِص، (۱) اجازه منـل، د دم چُف اثر پيـدا کـول ـ(۲) خبـرې تـه غـاړه کښېښـول، د چا وېنا ته سر ټيټول ـ

ــــ **نهٔ چلېدل** :ـ اِص، (۱) د اجازې اثر نهٔ کېدل ـ(۲) د خبرې اثر نهٔ کېدل ـ

ــــ **نهٔ منل** :ـ اِص ،(۱) د دم چُف اثر نهٔ کول، اجازه نهٔ منـل ـ(۲) خبـرې تـه غـاړه نهٔ کښېښول ـ

ــــ **وتل** :ـ اِص ،(۱) ساه وتل، مړ کېدل ـ(۲) ډېر ستړے کېدل ـ(۳) د مقابلې توان نهٔ

پاتې کېدل ـ(۴) پړه منل ـ

ــــ **وهل** :ـ اِص، (۱) خبره کول، ګيله کول ـ

مـا د يـار لـه غـمه دم وهلے نهٔ دے
کـه مې دم وهلے نهٔ دے هم رسوا شوم (رحمٰن)

(۲) سيالي کول ،ځان برابر شمارل ـ

لـه قـامـت سره ئې دم واهـهٔ کجورې
ځکه ئې ډکه شوه سرو په خندوخار ملا (علي خان)

**بې دمه کول** :ـ اِص ،کمزورے کول، د لاده باده پرې ايستل، ستړے کول ـ

**بـې دمـه کېـدل** :ـ اِص، کمـزورے کېـدل، بـې ارامـه کېـدل، سـتړے کېـدل، ستومانېدل ـ

**په دم کښې راوستل** :ـ اِص، (۱) اجازه لاندې راوستل، د دم چُف اثر کول ـ(۲) د خپل اثر لاندې راوستل ـ

**پـه دم لاندې کـول** :ـ اِص (۱) اجـازه لانـدې راسـتل (۲) پـه چـل ول خبـرې منلـو تـه تيارول

**پـه دم لانـدې کېـدل** :ـ اِص، (۱) اجـازه لانـدې راتلـل ـ(۲) خبـرې منلوتـه غـاړه کښېښودل ـ

**په د مونو** :ـ اِص، په اُودو، په دم چُف، په اُستازۍ ـ

**په دې دم** :ـ اِص ،په دې ساعت، په دې ګړۍ، په دې ټکي، په دې وخت ـ

**د دمه ايستل** :ـ اِص، ډېر کمزورے کول، دلادو بادو ويستل ـ

**د دم نه وتل** :ـ اِص، د اجازې نه بهر کېدل، د دم چُف اثر ختمېدل ـ

**د دم نه ويستل** :ـ اِص، (۱) د اجازې نه بهر کېدل-(۲) ډېر بې وسه کېدل-

**هردم** :ـ اِص ،هر وخت، هر ساعت، هره ګړۍ ـ

پـه هـر دم کښـې نـوې نـوې تماشـه کـړم
زه رحمـان د خـدا ے وکـړو وتـه حېـران يـم

**هغه دم** :ـ اِص ، هغه وخت ،هغه ساعت، هغه ګړۍ، په هغه ټکي ـ

که يو دم شي هغه يار ورځخه لرې
هـغـه دم شـي ورتـه عمـر قيـامت (رحمٰن)

**يو دم** :ـ اِص، (۱) سمدستي ـ(۲) يو ساعت، لږ ساعت ـ

چې يو دم مې له نظره تهٔ يو خواشې
دا جهان لکه لحد راباندې تنګ کړې (رحمٰن)

**دما** :ـ (دَ+ما) ، [پ ، حرف] زما ـ

**دمادم** :ـ (دَ+ما+دَ+م) ، [پ ، اِس] دم په دم، پرله پسې، په يو مخ ـ

**دماغ** :ـ (د+ما+غ) ، [فا، اِس، مذ، وا، ج : دماغُونه] (۱) مازغهٔ ـ

دا بهار چې درست جهان ئې معطر کړ
دمـاغ ولې پـه دا بـوئې معطر نهٔ کړ (رحمٰن)

(۲) فخر، لوئي، غرور، وياړ ـ

چې د کبر خيال دماغ وته ئې ګورم
انديښنې مې وښې بيدارو ته اودهٔ کا (خوشحال)

ــــ **خرابېدل** :ـ اِص، (۱) لېونے کېدل، پاګل کېدل ـ(۲) په خبره نهٔ پوهېدل ـ

ــــ **ګوزول** :ـ اِص ، د چا غرور ماتول ـ

اب وتـاب زمـا د داغ
کُوز کړه نمر ځخه دماغ (حميد)

ــــ **کول** :ـ اِص ، غرور کول، لوئي کول ـ

**تردماغ تېرېدل** :ـ اِص ، مازغوته رسېدل، اثر کېدل ـ

بې دماغه بـه تر سروترمال تېر شي
چې ئې تېر شي تر دماغه بوئې دستا (رحمٰن)

**لوئې دماغ لرل** :ـ اِص، (۱) ډېره پوهه لرل ـ(۲) زيات کبر او غرور کول ـ

**دماغجن** :ـ (د+ما+غ+ج+ن) ، [پ، اِس، ص، مذ ، (مؤ، وا : دماغجنه جنې]

(۱) دماغژن، دماغي،معزوره ـ(۲) ښهٔ مازغهٔ لرونکے،عقلمند ، پوهه ـ

**دماغژن** :ـ (د+ما+غ+ژَ+نْ) [پ، اِس، ص، مذ ، (مؤ، وا دماغژنه ،ج : دمـاغژنې]

و - دماغجن ـ

**دماغي** :ـ (د+ما+غيْ) [پ، اِس، ص] و دماغجن ـ

دا طالع زما ځهٔ اوس نهٔ دے ځائي دے
چې په چـا باندې ميئن شم دماغي شي (خوشحال)

**دمامه** :ـ (دَ+ما+مَه) ،[پ ،اِس ،مؤ ،وا ،ج : دمامې] ډمامه، نغاره ـ

**دُمبال** :ـ (دُ+م+با+لْ) [پ ،اِس ،مذ] دمباله ،اخر، شا ،دُنبال، رستنی حصّه ـ

**دمبالـه** :ـ (د+م+با+لـهْ) ،[اَف : پ (قـاموس) پ، اِس ،مـؤ] (۱) اخـر، شـاته، دمبال ـ(۲) هغه ګل دار خورجين چې قيمتي سامان پکښې کښېښودے شي، دمبولا،دمبېله ـ

**دمبول** :ـ (د+م+بَ+و+لْ) ،[اَف : پ (قاموس) مص مت] حرکت ورکول، خوځول ـ

**دمبولا** :ـ (دَ+م+بُو+لا ،[اَف : پ (قاموس) اِس] و-دمباله (۲) ـ

**دمبولے** :ـ (د+م+بَ+و+لےَ) ،[اَف : پ (قـاموس) مف، مـذ ،وا، ج : دمبـولې، مـؤ : دمبولې] حرکت ورکړے، خوزولے ـ

**دمبونه** :ـ (د+م+بَ+و+نَه) [اَف : پ (قاموس) حمص] حرکت ورکُونه، خوزونه

**دمبوُونکے** :ـ (د+م+بَ+وُو+نْ+کےَ) [اَف : (قاموس) فـاع، مـذ ،وا، ج : دمبـوونکي، مؤ : دمبووُنکې] حرکت ورکوونکے، خوزوونکے ـ

**دمبيلـه** :ـ (دَ+م+بي+لـه)، [اَف : پ (قـاموس) اِس ،مـؤ، وا، ج : دمبيلـې] و - دمباله (۲) ـ

**دُمچي** :ـ (دُ+م+چيْ) ،[پ ،اِس، مؤ] پيارمه، هغـه پټی چې د اَس د لکی لاندې تېره شوې وي ـ

**دم ختلے** :ـ (دَ+م+خْ+ت+لےَ) ، [پ،اِس، ص ،مـذ ،وا، ج :دم ختلـي ،مـؤ :دم ختلې] مړ شوے ـ

**دمخنے** :ـ (د+م+خ+نےَ) [پ ، حرف ] مخکښے، وړاندينے ـ

**دمخه** :ـ (د+م+خَه) [پ ، حرف] (۱) رومبنے ـ(۲) توان، طاقت ـ(۳) خاطر، د پاره ـ

ــــ **کېدل** :ـ اِص، د لوريه کېدل، د چاله طرفه کېدل ـ

ــــ **نهٔ کېدل** :ـ اِص، د وسه نهٔ کېدل ـ

**د چا دمخه** :ـ اِص ،د چا په خاطر، د چا د پاره ـ

**د مخـه تـوب** :ـ (دَمخـه+تو+بْ)[پ، اِس ، مـذ ] د مخـه والـے، وړانـدې والـے، وړاندې کېدهٔ ـ

**د مخه والے** :ـ (دَمخه+وا+لےَ [پ، اِس، مذ] و - د مخه توب ـ

**دمدار** :ـ (دَ+م+دا+رْ)، [فا، اِس، ص، مذ (مؤ، وا : دمداره، ج : دمدارې]

ځان لرونکے، ځان دار ـ

هر دم دارئې په خپل کار کښې دے خوښ کړے
کــه ســړے دے کــه پـېرے که قوس وغسه (خوشحال)

**دم درحال** :- (دَ+مْ+دَ+رْ+حا+لْ) ، [پ ، ص] تلوار، تادي -
د بلبل د پاره تل وے په چمن کښې
د پسرلي ګله تلۀ ولې دم درحال کړې (خوشحال)

**دم درُود** :- (دَ+مْ+دَ+رُو+دْ) [پ، اس ، مـذ] (۱) دم درُهـه، دُعـا (۲) د فقیرمحمـد عباس د پښتوژبې کتاب -

**دم دُرهه** :- (دَ+مْ+دُ+رْ+هَه) [پ ، اس] و - دم درُود -

**دم دړه** :- (دَ+مْ+دَ+ړَه) ، [اَف : (قـاموس) اس، مـؤ، وا، ج : دم دړې] د جولاګـانو د کډې د تنستې هغه لرګي چې لاندې پاس ئې کوي -

**دم دلاسه** :- (دَ+مْ+دَ+لا+سَه) [پ، اس ،مؤ، وا، ج : دم دلاسې] تبه تسلّي -

**ــــ کول** :- اص، تبه تسلّي کول، رضا کول -

**ــــ کېدل** :- اص، تبه تسلّي کېدل، رضا کېدل -

**دمـدمال** :- (دَ+مْ+د+ما+لْ) [اَف : پ (قـاموس) اس، مـذ] دنداسه چې زنانه ئې غابنونه پرې صفا کوي او شُونډې هم پرې سرې کوي -

**دمدمـه** :- (دَ+مْ+دَ+مَـه) [پ، اس، مـؤ، وا، ج : دمـدمې] (۱) د کـور بهرنـۍ لويـه دروازه (۲) غټه بې ډوله ښځه (۳) لوئي بډائي (۳) مورچه بندي -

**دمدمه_ کول** :- اص، لوئي بډائي کول -

**دمرده** :- (دَ+مْ+رَ+دَه) ، [اَف : پ (قاموس) اس] د مېچنې لاسکے -

**د مړی** :- (دَ+مْ+ړ+ی) [اَف : پ (قاموس) اس ،مؤ] د ملی ، د پیسې اتمه حصه -

**دمـړے** :- (دَ+مْ+ړے) [پ ،ه : د مـړي، اس، مذ ،وا، ج : د مـړي] پخـوانۍ نیمـه ادېله ،د پخوانۍ پيسې څلورمه حصّه -

**دمساز** :- (دَ+مْ+سا+زْ) [پ ،اس ،مذ ،وا، ج : دمسـازان (مـؤ ،وا، ادمسـازه ،ج : دمسازې] خوا خوږے، د زړۀ ملګرے -
ډېر ياران مې تر سرتېر دي ځوان وم زوړ شوم
په زرګُونو کښې پېدا نۀ شو دمساز
(خوشحال)

**دمغار** :- (دَ+مْ+غا+رْ)، [پ، اس، معرفه، مذ] د مینګورې نه اخوا د سیند په پورې غاړه د یو کلي نوم -
د تا ترې په وچو ځُو کوګلان نۀ ټُوکېږي
لاد دمغار او لواغرپه سیمه اور ورېږي (پریشان خټک)

**دمق** :- (دَ+مَ+قْ) [پ (سو) اس ، مذ] (۱) د ملک، لږ ساعت (۲) ارام، دمه -

**د دمقه اوړېدل** :- (سو) اص ، په لږ ساعت کښې خبره ختمېدل -

**دمک** :- (دَ+مَ+کْ) [پ، اس ، مذ] (۱) و - دمق
چې خېمه ئې د سیلاب په مخ شوه لکه
د حُـباب تـمـاشـه ګـوره تـر دمـکه (رحمٰن)
(۲) دُرمټ، پتک -

**ــــ ته نۀ پرېښول** :- اص ،دمې ته نۀ پرېښودل -

**دم ګـرے** :- (دَ+مْ+ګَ+رَے) [پ، اس، ص، مـذ ،وا، ج : دم ګـري] د دم خاونـد ، هغه ځوک چې اُوده لري -
هـيڅ صحت مې د دم ګرو په دم نۀ شي
هم په دا چې زما دم وي ستا په دم کښې (رحمٰن)

**د مګـی** :- (دَ+مْ+ګ+ی) ، [اَف : پ (قـاموس) اس، مـؤ] چـوونګړت، چنـدرو، د ماشومانويوه لوبه -

**دمل** :- (دَ+م+لْ) ،[پ، مص مت] دمول، دم کول -
مردګان ئې د ژوندیو په حساب کړل
چې کامل پـــه خپله دم پکښې دملې (مرزا خان انصاري)

**دملی** :- (دَ+مْ+ل+ی) ، [اَف :(قاموس)، اس، مؤ] و -د مړی -

**دمن** :- (دَ+مَ+نْ) ، [ه، اس، معرفـه ، مـؤ] د هندوستان د یوې مشـهورې قيصـې کـردار چـې پـه نـل دمـن مشـهوره ده - چـې پـه نـل دمـن مشـهوره ده -
زاهدورچنې انکار کاندي له عشقه
نـــل دمن لېلا مجنون لولې په کور (خوشحال)

**دمو** :- (د+مُو) ، [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ] د دۀو سیندونُو د یو ځـا ے کېدلو ځا ے، دوابه، دُواوه -

**دمول** :- (دَ+م+و+لْ)، [پ، مص مت] (۱) دم اچول، دم کول (۲) وريـژې يـا چـائے وغېره په مړ اور پخول -

**دمونه** :- (دَ+م+و+نَه) ، [پ ، حمص] (۱) دم کونه ، دم اَچونه (۲) وريـژې يـا چـائے وغېره په مړ اور پخونه -

**دمووُنکـے** :- (دَ+م+وُو+نْ+کـےَ)، [پ، فـا ع، مـذ ، وا ، ج : دمــوونکي، مـؤ : دمووُنکې] (۱) دم اچوونُکے، دم کوونُکے (۲) وريـژې يا چائے وغېره په مړ اور پخوونُکے -

**دمه** :- (د+مه) ، [اَف : پ (قاموس) اس، مؤ] اغېړ ، بدهضمي، د خېټې خرابي -

**دمه** :- (د+مه) ، [پ، اس ،مؤ ،وا ،ج : دمې] (۱) ساه اخستنه، ارام -
هغه د ګُورسوري څښتن هغه د ورځې خاوند
چې به مخلوق ورلاندې ناست وو ددمې د پاره (پرېشان خټک)
(۲) د ساه لنډې بيماري -

**ــــ په دمه** :- اص ،په وار وار -

**ــــ خوړل** :- اص، ارام کول -

**ــــ غوښتل** :- اص، ارام غوښتل -

**ــــ کول** :- اص، ارام کول، ساه اخستل -
په ژړا د زړۀ دمه کړم ګڼه چوي
دے ودان دا پښنور په دا تیراه (حميد)

**ــــ کېدل** :- اص ،(۱) په ارام کېدل -
د رحمـــان د زړۀ دمـــه پــه هيڅـــا نـــۀ شـــي
مســـافر غونـــدې حېـــران دے بـــې مخلصـــه
(۲) د ساه لنډې په مرض اخته کېدل -

**ــــ ور کول** :- اص ،ارام ورکول -

**په دمو دمو** :- اص ،په دمه دمه، په مزه مزه -

**په دمه** :- اص، په مزه، ورو -

**په دمه دمه** :- اص ،ورو ورو ، په مزه مزه، په ارام ارام -

**په دمه راتلل** :- اص ،په مزه مزه او په ارام راتلل -

**د زړۀ دمه پرې کېدل** :- اص ،د زړۀ سود پرې کېدل ، زړۀ پرې يخېدل -

**دمه ځا ے** :- (دَ+مه+دْ+زا+ے) [پ، اس، ص ،مذ] د ارام ځا ے، د ساه سمولو ځا ے -

**دمـه لـوے** :- (دَ+مـه+ل+وے)، [اَف : پ (قـاموس) اس، ص، مـذ، وا ،ج : دمـه لوي، مؤ، دمه لوې] دمه غوښتُنکے، ارام غوښتُنکے -

**دمېـدل** :- (دَ+مې+د+لْ) [پ، مـص لا] (۱) دم کېـدل، چُـف کېـدل، اُوده اچـولے کېدل (۲) وريژې يا چائے وغېره په مړ اور پخېدل -

**دمېدنـه** :- (دَ+مې+د+نَـه) ،[پ ، حمـص] (۱) دمېـده، دم کېدنـه، چُـف کېدنـه، اُوده اچولے کېدنه (۲) وريژې يا چائے وغېره په مړ اور پخېدنه -

**دمېـدُونکے** :- (دَ+مـې+دُو+نْ+کےَ) ،[پ، مـف ،مـذ ، وا ، ج : دمېـدونُکي،مؤ : دمېدونُکې] (۱) دم کېدونُکے، اُوده اچولے کېدُونکے (۲) وريژې يـا چـائے وغېره په مړ اور پخېدُونکے -

**دمېدۀ** :- (دَ+مې+ده) [پ ، حمص] و - دمېدنه -

**دن** :۔ (دَ+نْ)، [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ] کوږوالے، وَل، پیچ۔

**دناؤ** :۔ (د+نا+ؤ)، [اَف : پ (قاموس) اس] د غنمو فصل د زېږېدو نه پس په اخري ځل خروبُونه۔

**ــــ ورکول** :۔ اص، د غنمو فصل د زېږېدو نه پس په آخري ځل خړوبَول۔

**دُنبال** :۔ (دُ+مْ+با+لْ)، [پ ،فا : دُنباله، اس، مذ] و - دُمبال۔

اخـر حُســن زرۀ ور مـه بولـه حميـده
مـړنے د لښـکر درُمي پـه دُنبـال پـس

**په دُنبال ګرځېدل** :۔ اص ،د ټولو نه روستو ګرځېدل۔

نيستیٔ واړه د هستیٔ په دُنبال ګرځي
نـۀ ډوبېږي پـه اوبو کښې تش جهاز (رحمٰن)

**دنبالال** :۔ (دُ+مْ+با+لا+لْ)، [پ ،اس، مذ] د ګډ خوټې۔

**دنبی** :۔ (دَ+مْ+ب+ئی)[اَف : پ (قاموس) ،اس ،مؤ] د ماشُومانو یوه لوبه، چندولیٔ

**دنچک** :۔ (دَ+نْ+چَ+کْ)، [پ (سو) ص] نيمچه، نيم ګډر۔

**دنـدارُو** :۔ (دَ+نْ+دا+رُوْ)، [اَف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] يـو قسـم دانـه چـې د ماشومانو پ سر کښې راخېژي۔

**دنداسه** :۔ (دَ+نْ+دا+سَه) [پ، اس ،مؤ، وا، ج : دنداسې]د کچه غوز يا د غوز د ونې پټ، چې ښځې غاښُونه پرې صفا کوي او شُونډې پرې سرې کوي

**ــــ وهل** :۔ اص، په دنداسه غاښونه صفا کول او شونډې سرې کول۔

**دندان** :۔ (دَ+نْ+دا+نْ ، [فا ، اس، ج] غاښُونه۔

د حـيا پــه کـور مــې اُو ووري ړلـیٔ
پـه خندا چې راته سپين کاندې دندان شوخ (حميد)

**دندان ساز** :۔ (دندان +سا+زْ)[مؤ ،وا : دندان سازه ،ج : دندان سازې] مصنوعي غاښُونه لګووُنکے۔

**دندان سازي** :۔ (دندان+سا+زِيْ) [فا ، اس، ص، مؤ] د مصنوعي غاښونو لګولو کار۔

**دندانـه** :۔ (دَ+نْ+دا+نَه) [فـا ،اس، مـؤ، وا، ج : دنـدانې] (۱) د ږمنځې يـا د اَرې غاښ۔(۲) څروبے، زاوۀ۔

**دنـدُوړه** :۔ (دَ+نْ+دُوْ+ړَه) [اَف : پ (قـاموس) اس](۱) خاشـکيـر۔(۲) جيـنـجن، پشولمے

**دنـدُوکار** :۔ (دَ+نْ+دُوْ+کـا+رْ) [پ، اس، مـذ] (۱) شـور زوږ، غوبـل۔(۲) د لُـوخړو ختل۔(۳) د توپو ګړزا۔

يو پلو د توپ خانې وو دندُو کار
بــل پــلو د نېزه بازو کړکهار (مسعود ګل)

**ــــ جوړول** :۔ اص،(۱) شور زوږ جوړول، غوبل جوړول۔(۲) لُوخړې جوړول۔

**ــــ جوړېدل** :۔ اص،(۱) شـور زوږ جوړېـدل۔(۲) لُـوخړې ختـل۔(۳) د توپـو ګـړزار جوړېدل۔

**ــــ ختل** :۔ اص ،لُوخړې ختل۔

**دنــده** :۔ (دَ+نْ+ده)، اپ، ۀ : دهنــدا ، اس ،مـؤ، وا، ج : دنــدې] کــار، کســب، مشغولا، هُنر۔

**ــــ کول** :۔ اص ، کار کسب کول، مشغولا کول، هُنر کول۔

**دنِ** :۔ (دَ+نِ) ، [پ (وز) (اس، مذ] د مېښنو ګله۔

**دنِ دنِ** :۔ (د+نِ+د+نِ) [پ، اس، مذ](۱) چرچنِ، چن چنک۔(۲) د رباب اواز۔

**دنکار** :۔ (دَ+نْ+کا+رْ)، [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ] يو قسم تريخ بُوټے چې په پرهر د پهې په ډول لګولے شي او زنانه ئې د سپږو د مړولو د پاره د سر په وېښتو کښې اچوي۔

**دنوائي** :۔ (دَ+نْ+وا+ئـيْ) ،[پ ، رګـن) اس، ص، مـذ، وا، ج : د نوايـان] د غـواو مېښنو لوشُونکے۔

**دنه** :۔ (دَ+نْهَ)، [پ (وز) اس ، مؤ] کس، د نظم يو قسم۔

**دنه** :۔ (دَ+نْهَ) [پ، (ب،خ) اس، مؤ، وا، ج : د نې] دېنه، د غوايانو ګُواره۔

**ــــ کول** :۔ (وز) اص، اينګے وهل، د مړزانو يا بټېرانو جال طرف ته د شړلو د پاره اواز کول۔

**دنيا** :۔ (دَ+نْ+يا) [پ ،ه : دهنيا ،اس ، مؤ] دانيـال، د يو خوشبو دار بُوټي تخم چې د مېده کولو نه پس په کټوئ کښې د مسالې سره اچولے شي۔

**دنکرا** :۔ (دَ+نْ+ک+را)، [اَف : پ (قاموس) اس ،مذ] د نرګس په شان يو بُوټے چې په اُوبو کښې راټوکېږي۔

**دنګ** :۔ (دَ+نْ+ګْ)، [پ، ص ،مذ ، (مؤ ،وا :دنګه ،ج : دنګې ](۱) اوُچت۔

لـکـه يوه ښکلې کښته ګوري د غريب جونګړه
ددنګ محل په دريځو کښې سپينه سپينه زانګي (پرېشان خټک)

(۲) مست، په نشه کښې۔

**ــــ کېدل** :۔ اص، (۱) اُوچتېدل۔(۲) مستېدل۔

**دنګ** :۔ (دَ+نْ+ګْ) ، [پ، اس ،مذ ، وا ، ج : دنګُونه] د شولو صفا کولو پيکو۔

**دنـګ دنـګ** :۔ (دَ+نْ+ګْ+دَ+نْ+ګْ) [پ، ص، مـذ ] رپـه هـار، لـرزه، رپېدنـه، رېږدېدنه

**ــــ کېدل** :۔ اص ، د سارۀ نه رپېدل۔

**دنګ غاړے** :۔ (د+نْ+ګ+غا+ړے) [پ، ص ،مذ ،وا ، ج : دنګ غاړي] د دنګې غاړې خاوند۔

**دنګ غوټې** :۔ (دَ+نْ+ګْ+غو+ټِيْ) ، [پ (ب،خ) اس ،مذ ، ج] مرګاټې، پيټـې ،د ماشُومانو يوه لوبه چې په وړو وړو کانړو ئې کوي په دېکښې غټ کانړے ته دنګ او ورکوټو ته غوټې وائي۔

**دنګـل** :۔ (دَ+نْ+ک+َلْ) [فـا ، اس، مـذ ، وا ، ج : دنګلونـه] (۱) ګنـه ګُوڼـه، غونډه، مجمع۔ (۲) اکاړه، د پهلوانانو د کُشتیٔ ځاے۔

**دنګل** :۔ (دَ+نْ+ګ+لْ)، [پ ، مص مت] دانګل، ټوپ وهل۔

**دنګلـه** :۔ (دَ+نْ+ګ+لَـه)[اَف : پ (قـاموس) ه : دانګـا ، اس، مـؤ] فسـاد ، جګـړه، غوبمنډ۔

**دنګوچي** :۔ (دَ+نْ+ګو+چِيْ) ،[اَف : پ (قاموس) ص، مذ] دنګوچې، ګډ ګډ تلل

**په دنګوچي تلل** :۔ اص، ګډ ګډ تلل۔

**دنګوچي** :۔ (دَ+نْ+ګو+چي)،[پ، ص ،مؤ، ج] و- دنګوچي۔

**دنګــول** :۔ (دَ+نْ+ګ+و+لْ) [پ ،مـص مــت] (۱) دانګــول ،پــه ټوپونــو کــول۔ (۲) اُوچتول، دېوال پاس خيژول۔

**دنګونــه** :۔ (دَ+نْ+ګ+ونَــه) [پ ، حمــص] (۱) دانګونــه، پــه ټوپونــو کونــه۔ (۲) اُوچتونه، دېوال پاس خېژونه۔

**دنګوُونکے** :۔ (دَ+نْ+ګ+وُو+نْ+کےَ) [پ ،فـاع، مـذ ،وا ، ج : دنګووُنکي،مـؤ : دنګـووُنکې] (۱) دانګـووُنکے، پـه ټوپونـو کـووُنکے۔(۲) اوچتـووُنکے ،دېوال پاس خېژووُنکے۔

**دنګه** :۔ (دَ+نْ+ګَه)، [پ، اس ، مؤ] ګڼه ګُوڼه، ډېر خلق۔

**ــــ کول** :۔ اص، ګڼه ګُوڼه جوړول، ډېر خلق يو ځاے کول۔

**ــــ کېدل** :۔ اص ،ګڼه ګوڼه جوړېدل ،ډېر خلق يو ځاے کېدل۔

**دنګه** :۔ (دَ+نْ+ګَه) ، [اَف : پ (قاموس) اس، مؤ : وا ، ج : دنګې] (۱) د مزې بُوټے ۔(۲) و - دنګله۔

**دنګـه دنګـه** :۔ (دَ+نْ+ګَه+دَ+نْ+ګـهَ) [اَف:پ(قـاموس)،اس،مؤ] الاهو، مـور چې ماشوم اُودۀ کوي په هغه وخت چې کومه الاهو ورته وائي۔

**دنګه دنګه چي** :۔ (دنګـه دنګـه +چِيْ)، [اَف : پ (قاموس) اس] ماشوم پـه لاسو کښې پاس اُوچتول چې ورته اوچې چې هم وائي۔

**ــــ کول** :ـ اص، اوچې چې کول ،ماشوم په لاسوُنو کښې پاس اوچتول ـ
**دنګېدل** :ـ (دَ+نْ+ګې+د+لْ)[پ، مص لا] (۱) دانګېدل، په ټوپونو کېدل(۲) اوچتېدل
**دنګېدنه** :ـ (دَ+نْ+ګې+د+نَه)، [پ ، حمص] (۱) دانګېدنه، په ټوپونو کېدنه،د نګېدۀ .(۲) اوچتېدنه ـ
**دنګېدوُنکې** :ـ (دَ+نْ+ګې+دُوْ+نْ+کےَ) [پ، فاع ،مذ ، وا ، ج : دنګېدوُنکي ،مؤ : دنګېدونکې] (۱) دانګېدوُنکے، په ټوپُونو کېدوُنکے .(۲) اوچتېدوُنکے ـ
**دنګېدۀ** :ـ (دَ+نْ+ګې+دهٔ)، [پ ، حمص] و - دنګېدنه ـ
**دننه** :ـ (د+ن+نَه) ، [پ ، حرف] پکښې،ننه، په مېنځ کښې ـ

غم پــه زړۀ کښې هسې پټ ساتم لــه خلقو
لکــــه زړه مــې د ے دنــنه په بدن پټ (علي خان)

**ــــ راتلل** :ـ اص ،ننه داخلېدل،اندر راتلل(ګن)
**ــــ کول**:-اَندر کول،ننه ایستل،(۲)قېدول،بندي کول-
**ــــ کېدل**:-اص،ننه کېدل،اندر کېدل،(ګن)(۲)قېدېدل،بندي کېدل-
**دننــے** :- (د+ن+ن+نـےَ)، [پ،ص،مـذ ،وا ،ج:دنني،](۱)د نـن ورځې،داخلـي اندروني،د ننه سره **تعلق** لروُنکے-
**دنـه**:- (دَ+نـه) [اَف:پ(قاموس)ه:دهانـه،اِس،مؤ،وا ،ج:داني]د اوبُـو د کـارېز سـر ورخ
**دنه**:- (دَ+نَهَ) [اَف:پ(قاموس)،اِس،مؤ،وا ،ج:دنې] ،د زنانۀ د غاړې یو کالے-
**دني**:- (دَ+نيْ)، [ع،ص]، سپک،پرېوتے،بېکاره-

راسه زړۀ ورپورې مه تړه نادانه
که ئې ګورې دا فاني دنیا دني ده (خوشحال)

**دُنیا**:- (دُ+نْ+یا)، [ع،اِس،مؤ]، (۱)جهان،عالم،کائنات،نړۍ-

هوښیار مه ګڼه هوښیار د دې دنیا
بې وقوف د ے وقوف دار د دې دنیا (رحمٰن)

(۲) خلق ـ

خوک چې مخ کا په مذهب د خپل مولا
د هـغـو پـه خـدمـت اودري دُنـیا (خوشحال)

(۳) دولت، جائېداد ، مال حال ـ

**ــــ آبادېدل** :ـ اص (۱) د ډېرو خلقو په یو ځا ے کښې اوسېدل(۲) د خلقو حال ښۀ کېدل ـ
**ــــ اخستل** :ـ اِص،(۱) پېسې اخستل .(۲) د دین او اخرت په ځا ے دُنیا خوښول

نادانان دین ورکوي دنیا پرې اخلي
دانا نـۀ کـړي دا دادن داګرفتن (حمید)

**ــــ پرېښودل** :ـ اص،(۱) د دُنیا نـه مخ اړول، د دُنیـا د کاروبـار نـه لاس اخستـل .(۲) مړ کېدل ـ
**ــــ پسې کېدل**:ـ اص ،د دنیا فکر کول ،هر وخت د دنیا په سوچ کښې کېدل ـ
**ــــ پورې زړۀ تړل** :ـ اص ،دنیا زیاته خوښول ـ
**ــــ په سراخستل** :ـ اص ،ډېر شور زوږ کول، ډېر ناقلاره کېدل ـ
**ــــ په لاس راتلل** :ـ اص ،مالداره کېدل، د دُنیا خاوند کېدل ـ
**ــــ په مخه اخستل** :ـ اص ،(۱) په دنیا پسې کېدل، د دنیـا دولت ټولولـو غمُونـه کول .(۲) ډېر کارُونه په یو ځا ے شروع کول ـ
**ــــ ته شـا کول** :ـ اص ،(۱) دنیا تـه شا کـول، د دنیا فکـر نـۀ کـول .(۲) د خلقـو د خبرو هېڅ پروا نۀ لرل ـ
**ــــ ته لته ورکول**:ـ اص ،د دنیا فکر نۀ کول، مال دولت ته شا کول ـ
**ــــ تیاره کېدل** :ـ اص، په چا سخته راتلل، بې اسرې کېدل ـ
**ــــ ټولـول**:ـ اص، دُنیا ګـرڅول، دُنیا جمـع کـول، مـال غونـډول ،تـش پـه دُنیـا پسې کېدل ـ

**ــــ جهان** :ـ اص، ټوله دُنیا ـ
**ــــ حېرانول** :ـ اص ،نا اشنا کار کول، دنۀ کېدو کار سرته رسول ـ

زمـــا نـــظـــامِ سـلـطـنـت دنـیـا حـېـرانـه کـړلـه
میاندې دې کښېني چې یو بل شېرشاسُورې پېدا کا (پرېشان ختک)

**دُنیا د کاره ایستل** :ـ اص ،د خپل کا دپاره د نورو خلقو وخت ضائع کول ـ
**ــــ ډېرول** :ـ اص ،مال دولت زیاتول ـ
**ــــ ډېرېدل** :ـ اص، مال دولت زیاتېدل ـ
**ــــ راټولول** :ـ اص،(۱) مال جمع کولو پسې کېدل .(۲) ډېر خلق راغونډول، دُنیا راغوُنډول ـ
**ــــ راغونډول** :ـ اص، و - دُنیا راټولول ـ
**ــــ راغونډېدل** :ـ اص، ډېر خلق یو ځا ے ته راغوُنډېدل ـ
**ــــ شرمول** :ـ اص ،ډېر درمولے کار کول، ځان په شرمونو شرمول، بې حیا کېدل ـ
**ــــ شندل** :ـ اص ،مال دولت خرڅ کول ـ
**غورځول** :ـ اص ،(۱) د مال دولت پروانۀ کول .(۲) د یو کس په مقابله کښې د ټولې دُنیا مخ اړول ـ
**ــــ کتل** :ـ اص ،(۱) ددُنیا سېل کول .(۲) تجربه حاصلول ـ
**ــــ ګټل** :ـ اص ،مال ګټل، تش د دُنیا کېدل ـ
**ــــ لټول** :ـ اص ،(۱) په دُنیا پسې کېدل، د دُنیا تـلاش کـول .(۲) دُنیا چاڼ کول، په دُنیا کښې ګرځېدل ـ
**ــــ ورپسې کېدل**:ـ اص ،د دُنیا خلق د چا پسې کېدل ، د خلقوچاته مخه کېدل ـ
**په دنیا اخته کېدل** :ـ اص، تش د پېسو ګټلو فکر کول ـ
**په دُنیا کښېناستل** :ـ اص ،مال دولت نۀ خرڅ کول ـ
**په دُنیا ګرځېدل**:ـ اص ،(۱) د دُنیا سېل کول .(۲) ډېرو خلقو ته خپله خبره رسول
**په دنیا مړېدل** :ـ اص ،ډېر مال دولت حاصلول، د دُنیا لالچ نۀ پاتې کېدل ـ
**په دُنیا نازېدل** :ـ اص، د دُنیا په مال دولت ویاړ کول ـ

په دُنیا مه نازېږې خلقه (ټپه)
د شاه جهان بادشاه نه پاتې شو تختُونه

**تردنیا تېرېدل** :ـ اص ،(۱) مړکېدل، د دنیا نه سفر کول .(۲) مـال دولـت قربـانول، له دُنیا تېرېدل ـ
**حرامه دنیا** :ـ اص، په ناجائزه او په ناروا ګټلے مال دولت ـ

پـه حـرامه دُنیا ساز مه شه یو کارستا
چې سل نوردرځخه وران کاندي برهم (حمید)

**د ټولې دُنیا** :ـ اص، (۱) د تمام جهان .(۲) د هرچا ـ
**د دنیا بازار** :ـ اص ،د دُنیا ګڼه ګوڼه ـ

واړه غم د ے که ئې پېرې که ئې پلورې
نـور څۀ نـشـتـه پـه بازار د دې دُنیا (رحمٰن)

**د دنیـا پـه غـم ککړېـدل** :ـ اص،(۱) د دنیـا پـه لاټجـو کښـې ګېرېـدل .(۲) د دُنیـا راټولولو حرص زیاتېدل ـ
**د دُنیا خاورې چڼل**:ـ اص ،په ټوله دنیا کښې لټول، د دنیا خاورې غلبېل کول ـ
**د دنیا خاورې غلبېل کول** :ـ اص ، و - د دُنیا خاورې چڼل ـ

که غلبېل کړم د تمامې دُنیا خاورې
بیـابـه نـۀ مومم دارا او شاه جهان (رحمٰن)

**د دنیا چار** :ـ اص ،د دنیا کار ـ

د دُنیا په چار به هسې وم غلط
د عقبا نشان به هېڅ نۀ وو راياد (قاسم علي افریدے)

**ددنیا چارې** :ـ اص، د دُنیا کارُونه، د دنیا لاټجې ـ

د دنیا چارې همه واړه فاني دي
یاره ستا جوروجفا ولې افزون دي (رحمٰن)

**د دُنیا څخه تلل** :۔اِص، مړ کېدل، د دُنیا نه سترګې پټول۔
**د دنیا خبرې** :۔اِص ،د ټول جهان لانجې، د دنیا غمونه۔
**د دُنیا خلق** :۔اِص ،د دې جهان وګړي۔

وینو مـــه شه په دوستی د دېنیا خلق
دا بـــې شـــرم بـــې وفـا بې حیا خلق (حمید)

**د دنیا روزګار** :۔اِص ،د دنیا کار کسب۔
**د دنیا سُود** :۔اِص، د دنیا فائده۔

د دنـیا د ســُود د پـاره بائـېده نـهٔ دي
چې ګــرېوان کړې د عزت د چا شُوک پوک (حمید)

**د دُنیا سود زیان** :۔اِص، د دنیا ګټه تاوان۔

د دنـیـالــه ســود وزیانه خبر نهٔ وم
په دېدن سره دې مست کړم بې شرابه (خواجه محمد )

**د ګرځنې دنیا** :۔اِص ،د ټولې دُنیا، د واړه خلقو۔
**دین په دُنیا** :۔اِص ،په دواړو جهانه، هم په دین او هم په دُنیا ۔
**دین په دُنیا بدلول** :۔اِص ،د دین پـه مقابلـه کښې دُنیـا خوښـول، د دیـن پـه ځـا ے دُنیا اخستل۔
**فاني دُنیا** :۔اِص، نیمګړې دنیا، پاتې دنیا ۔

توکل دې په خپل خدا ے کړه تېمور شاه
څـهٔ پــکار دي د فاني دنـــیا کــارونه (تېمور شاه ابدالي)

**له دُنیا تېرېدل** :۔اِص ،و - تر دُنیا تیرېدل۔

پیغمبر غونـــدې صاحب له دنیا تېر شو
دا دنـــیا ئـــې ورانه نهٔ شوه په هجران (رحمٰن)

**نیګړې دنیا** :۔اِص ، و- فاني۔
**دنیـا دار** :۔(دُنیا+دا+ر)[فـا، اس، ص، مـذ، وا، ج : دنیـا داران ( مـؤ ،وا :دنیـا داره، ج : دنیا دارې] دُنَیا لرُونکے، د دنیا خاوند، پـه دنیـا کښـې بوخت، مالدار سړے۔

زه دینـار او درم نهٔ لرم په کور کښې
ولــې نــور عالم مې بولي دنیا دار (رحمٰن)

**دنیـا داري** :۔(دُنیـا+دا+رِيْ) [فـا ، اس ،مـؤ] (۱) د دنیـا کشـالې۔(۲) کـور، تېـر داري۔(۳) مال حال۔(۳) راشه درشه۔

دیــــن داري دنـیا داري ده ســـره لـــړي
مـــالیدلے هېڅ دیندار دُنیــــا دار نهٔ د ے (رحمان)

**دنیا۔ داري کول** :۔اِص ،د دنیا راشه درشه کول۔
**دُنیا ګوټے** :۔(دُنیا+ګو+ټې) [پ، اِس، تصغیر ،مؤ] دُنیا ګۍ، وړه دنیا ۔
**دنیا ګۍ** :۔(دُنیا+ګ+ۍ) [پ، اِس، تصغیر، مؤ] دُنیا ګوټې، وړه دنیا ۔

زما بـربادې دنیاګۍ ته پستنه رانهٔ شي
په څهٔ حیله یا د څهٔ کار په بهانه رانهٔ شي (پرېشان خټک)

**ـــــ ویجاړول** :۔اِص ،ورکوټې شان دُنیا بربادول۔

زهٔ ترې ویرېږمه د دوئ دا سازشي خیونه
هسې نهٔ کړي زمونږ دمینې دنیاګۍ ویجاړه (پرېشان خټک)

**د دنیا ګۍ بازار** :۔اِص، د دنیا بازار، د دنیا کاروبار۔
**دو** :۔(دَ+و) ، [پ، اس، مذ] (۱) منډه ، تړه، زغل، درړه، زغاښت۔

همېشه ئې د خپل یار په لورې دو وي
نهایت چې په دا دو کښې رسیدهٔ شي (رحمٰن)

(۲) د جوارۍ داؤ، شرط، بازي۔(۳) وار ۔

**ـــــ اخستل** :۔اِص، خپل وار اخستل، د موقعې نه فائده پورته کول۔
**ـــــ برابرېدل** :۔اِص ،دَو پرېوتل، دور راتلل، بازي ګټل، وار راتلل، ګټه کول ۔
**ـــــ پروهل** :۔اِص، دَو لګول۔
**ـــــ پرېوتل** :۔اِص، و- دَو برابرېدل۔
**ـــــ ته کتل** :۔اِص، وارته کتل، موقعې ته په څوکۍ کښېناستل ۔
**ـــــ چلېدل** :۔اِص ،کامیابېدل، ګټه کول، د چل ول نه کار اخستل۔
**ـــــ راتلل** :۔اِص، و-َو برابرېدل۔
**ـــــ غورځول** :۔اِص، په جوارۍ کښې دانه یا کُنجکه اچول۔
**ـــــ کول** :۔اِص (۱) منډه کول، زغلېدل۔

دهــارون څرخ پــائے نیلے ددې سپهر
څو به دَو کا چې ئې دَو په سر د بام د ے (رحمٰن)

(۲) بائلل، بویه ول۔

**ـــــ ګټل** :۔اِص، بازي ګټل، په جوارۍ کښې لګولے وارګټل، دَو وړل۔
**دَو۔ لګول**:۔اِص(۱) شرط لګول، بـازي لګـول۔(۲) پـه منډه تلـل، زغاښـتل، دَو وهل
**ـــــ وړل** :۔اِص، و-دَو ګټل۔
**ـــــ وهل** :۔اِص ،(۱) منډه وهل، ذغاښتل۔(۲) ډېره ګټه کول، بازي ګټل۔
**په دَو بائلل**:۔اِص، په جوارۍ کښې بائلل، لګولې بازي دلاسه وتل۔
**په دَو تړل** :۔اِص ،په منډه تلل۔
**په دَو تلل** :۔اِص، په منډه تلل۔
**په دَو دَو** :۔اِص، په منډه منډه ،په ذغاښته، زر زر۔
**په دَو راتلل** :۔اِص، په منډه راتلل، زر زر راتلل۔
**په دَو کښې راتلل** :۔اِص، په چل کښې ګېرېدل، دوکه کېدل۔
**په دَو کښېښول** :۔اِص، په بازي لګول، شرط پرې تړل، په دَو لګول۔
**په دَو لګول** :۔اِص، و- په دَو کښېښول۔
**دو** :۔(دو) [اَف : پ (قاموس) ص] دوګۍ، د شپشـتو یـا ببـلـ یو پـه لوبـه کښـې د ببلۍ صفت۔
**دوا** :۔(دَ+وا) [فـا ، اس، مـؤ، وا، ج : دوایـانې دوائې]دوائـي ،دارو،داروډُرمـل، علاج

زهٔ رحمٰـن د عشـق پـه درد کښـې هسـې خـوښ یـم
چـــې مـــې نشــــته پــــه دوابانـــدې غـــرض

**ـــــ کول** :۔اِص، دوائي کول، علاج کول۔
**دوا** :۔(دَ+وا+)، [پ، ع ،دُعا، اس، مؤ، وا، ج : دواګانې] دُعـا، د خدا ے پـاک نه غوښتل، زاري، بخښنه، اصطلاحات ئې د دُعا په پټې کښې راغلي دي۔
**دوا** :۔(دُ+وا)، [اَف : پ (قاموس) اس] د سروتعویذ، د زنانا ؤ کالے۔
**دوابه** :۔(دُ+وا+بَه)[پ، اس، معرفه] د کوهاټ په ضلع کښې د بنګشو د قبیلې یو کلے۔
**دواپــړ** :۔(دُ+وا+پَ+ړْ) ،[اَف : پ (قـاموس) اس ،مـذ ] مـؤ ،وا : دواپــړه ،ج : دواپړې] دُعاګوئي، دُعا غوښتُونکے۔
**دوات** :۔(دَ+وا+تْ)، [ع، اس، مـذ ،وا ،ج : دواتُونـه] مشـواڼې، د سـیاهۍ کښېښودو لوښے۔
**ـــــ جوړول** :۔اِص، سیاهي جوړول۔
**دواره** :۔(د+وا+رَه)، [پ ، حرف] سمدستي، چټ پټ ، له واره۔
**ـــــ حمله پرکول**:۔اِص ،ناڅاپي حمله پرې کول، سمدستي پرې راتلل ۔
**ـــــ نیول** :۔اِص، سمدستي نیول۔
**دواړه** :۔(دُ+وا+ړَه)، [پ ، ص] هر دوه، دوه سره۔

انس وجن که دانور عرب عجم دي
کاف ونون سره ئې دواړه کړل پیدا (علي خان)

**ـــ خطا کېدل** :ـ اِص، (۱) هر دوه خطا کېدل، دُنیا او اخرت دواړه خرابېدل. (۲) د دواړو منډه کول.

**ـــ کونه** :ـ اِص ،دواړه جهانه، دین دنیا.

هر چي ويښ شه له هستي نـــه نيستي ته
فـــراغـــت د دواړه کــونــو له عذاب شو خوشحال

**دوام** :ـ (دَ+وا+مْ) ، [ع ، ص ، مذ] مدام والے، همېشګي، هر وخت.

**ـــ موندل** :ـ اِص، همېشګي حاصلول، همېشه پاتې کېدل.

**دُوان** :ـ (دُ+وا+نْ)[پ (صوابي) ه : دهـوني ،اِس، مـذ] دُومـه ، دُونبـې، لُـوګـې، لُوخړه.

**دوان** :ـ (دَ+وا+نْ)، [فا ، ص] په منډه، په تړه، په بيړه.

ولـــقاء تـــه ئي روان کړ
ګوري څـهٔ عجب دوان (رحمت داوي)

**دوائي** :ـ (دَ+وا+ئيْ) ، [پ ،ع : دوا، اِس ،مؤ ،وا ، ج : دوايانې ،دوائي] دارُو.

حاجت دې شته د کـوچو نهٔ دارو نهٔ دوايانو
د خيلو مياندو اوښکې په نصيب وي د خوارانو (پرېشان ختک)

**دُوب** :ـ (دُوْ+بْ) [اَف :ـ پ (قاموس) اِس ، مذ] (۱) تبه (۲) زياته ګرمي (۳) غټ دېګ

**دُوباجه** :ـ (دُوْ+با+جَه) [اَف : پ (قــاموس) اِس، مـؤ، وا، ج :دُوباجې] دوه دَونه، دوه ګُونه، دوه چنده.

**دُوبار** :ـ (دُوْ+با+رْ) [پ ،فا : دوباره ،ص] دوباره، بيا، په بل ځل.

که دوبار د عشق په رنځ شومه رنځور زهٔ

**دُوباره** :ـ (دو+با+ره) (اَف :پ (قاموس) ص) نيم ګړ، نيمچه، هغه چرګ چې پلار ئې کولنګي وي او مور خسکې.

**دوباره** :ـ (دو+با+ره) (فا ، ص) دويم ځل، په بل ځل بيا. ع

چا چې سر دے په سجده ويار ته ايښے
دوبـاره له دې سـجـوده قـيام نـهٔ کا (رحمٰن)

**راتلل** :ـ اِص، بيارته راتلل، د مړکېدو نه پس بيا ژوندے کېدل.

دوبـاره دې راتـلـهٔ نـشـتـه پـه دُنـيا
نن دې وار دے که دروغ کړې که رښتيا (رحمٰن)

**ـــ کېدل** :ـ اِص، په دويم ځل کېدل، د سره کېدل.

**وئيل** :ـ اِص ،په دويم ځل وېنا کول، بيا بيا وئيل.

جاروائهٔ زما له ياره ډېر مشکل دي
زيـــاتـي څـهٔ لـه دوباره وائي واعظه (رحمٰن)

**دوباري** :ـ (دُوْ+با+ريْ) ، [پ ،اِس، ص ،مذ ، وا ، ج : دوباريان] هغه قيدي چې په دويم ځل قېد شي.

**دوباړے** :ـ (دو+با+ړَے)، [اَف : پ (قاموس) اِس ،مذ ،وا ، ج : دوباړي] سوباړے، سوتړے، د جامو وينځلو لرګے، ټيټے.

**دُوبجن** :ـ (دُوْ+بْ+جَ+نْ) [پ، ص ،مذ (مؤ، وا : دُوبجنه، ج : دوبجنې] دُوپچن، بد بُويه، سخا.

**دوبجنول** :ـ (دُوْ+بْ+جَ+نَ+و+لْ) [پ ، مـص مـتا] پـه قـصـد څـهٔ څيـز سخا کـول، دُوپچنول

**دُوبجنونه**:ـ (دُوْ+بْ+جَ+نَ+و+نَه) [پ ،حمص] دُوبجنونه، څهٔ څيز پـه قصد سخا کونه.

**دُوبجنوُونکے** :ـ (دُوْ+بْ+جَ+نَ+وُوْ+نْ+کےَ [فاع، مذ، وا ، ج : دُوبجنوُونکي،مؤ: دوبجنوونکې] په قصد څهٔ څيز سخا کوونکے، دوپچنوُونکے.

**دُوبجنېدل** :ـ (دُوْ+بْ+جَ+نې+د+لْ)، [پ ، مـص لا]دوپچنېـدل، بدبويـه کېـدل، سخا کېدل.

**دُوبجنېدنه** :ـ (دُوْ+بْ+جَ+نې+د+نَه)، [پ ، حمص] دُوپچنېدنه، سخا کېدنه، بد بويه کېدنه.

**دُوبجنېـــــدونکے** :ـ (دُوْ+بْ+جَ+نـــې+دُوْ+نْ+کےَ) [پ، مـــف، مـــذ ،وا ، ج : دوبجنېدوُنکي ، مؤ : دوبجنبدوُنکې] دُوبجنېدوُنکے، سکا کېدونکے، بد بويه کېدوُنکے

**دُوپړه** :ـ (دُوْ+ب+ړَه) ، [پ (خل) اس، مؤ] تته شيشه، دُوپړه.

**دوبګنے** :ـ (دو+بْ+ګ+نےَ) [اَف : پ (قـاموس) اس ،مـذ ،وا ،ج : دوبګني ،مؤ : دوبګنۍ]دواړي، د ګرمۍ سره تعلق لرونکے، د دوبي، دوبنے.

**دُوبګوړے** :ـ (دُو+ب+ګُو+ړے) [اَف : پ(قـاموس) اِس، مذ ، وا ،ج : دُوبګوړي] چوپال، چوپاړ، څپر.

**دوبندي** :ـ (دو+بَ+نْ+دی)، [پ (خ) اِس ، مؤ] د يـوې لارې نـه چې پـه ګُوم ځـاے کښې دويمه لاره بېله شوې وي-

**دُوبنـدے** :ـ (دُوْ+بَ+نْ+دَے) [پ (خـل) اِس ، مـذ] يـوه والـهٔ چې پـه دوه ځـاے تقسيم شوې وي.

**دوبنے** :ـ (دو+ب+نےَ)، [پ، اِس، ص ،مذ ،وا ، ج : دوبني] و - دوبګنے.

**دوبول** :ـ (دُوْ+بو+لْ)، [اَف : پ (قاموس) اِس ،مذ ، مؤ : دوبولئې]دوه پښې.

**دوبـــه** :ـ (دو+بَـــه) [اَف : پ (قـــاموس) اس] (۱) دوپـــه، تکـــي، دوکـــه (۲) بـــې اعتباره (۳) خوار سرېداګه.

**دوبه** :ـ (دو+بَه) [پ (مو) اس] دوبے، اوړے، د ګرمۍ موسم.

**دوبي** :ـ (دو+بِيْ) [پ ،ه : دهوبي ،اِس، مذ، وا ،ج : دوبيـان (مؤ ،وا : دوبنه، ج : دوبنې] جامې وينځوُنکے.

د دوي خيرنې جـامې بوئي د تنګ ځارنه کوي
دلـته داغـونـه د دوبـيانو په پښتو نهٔ لګي (پرېشان ختک)

**دوبے** :ـ (دو+بےَ) [پ (ګن) اس، مذ، وا ، ج : دوبې] ووړے، د ګرمۍ موسم.

**دُوبيارے** :ـ (دُوْ+بْ+يا+رے) [اَف : پ (قاموس) اس، مذ] مېرګن، جوړيان

**دوبيان** :ـ (دو+ب+يا+نْ) [پ ، اس معرفه] د مردان په ضلع کښې د يوسفزو قبيلې يو کلے.

**دُوبيـل** :ـ (دُوْ+بـې+لْ) [اَف : پ (قـاموس) اس، مـذ ، وا ، ج : دُوبېلونـه] (۱) وړه بېله (۲) د دوؤ اُوبو يا د ولو د يو ځاے کېدلو ځاے.

**دُوپ** :ـ (دُوْ+پْ)، [پ، ص، مذ] (۱) خوپ، تاؤ (۲) تبه.

**ـــ کېدل** :ـ اِص، (۱) خوپ زياتېدل (۲) تبه کېدل.

**دُوپـال**:ـ (دُوْ+پا+لْ) [اَف : پ (قـاموس) اِس، مـذ] هغـه غټ کانـے چې چينـه ترې را اوځي.

**دوپايه**:ـ (دو+پا+يه) [فا ، ص] دوه پښنيز، دوه پائيزه، د دوو پښو خاوند.

ته په اصل کښې ســـړے ئې ځاروے نهٔ ئې
د چـــارپـــايـــو چـــارې مـه کـوه دوپـايه (رحمٰن)

**دوپټ** :ـ (دُوْ+پ+ټْ) [اَف : پ (قاموس) ص] دو چنده، دوه ګُونه.

**دوپټـه** :ـ (دُوْ+پ+ټَـه)، [ه ،اِس ،مـؤ ،وا ،ج : دوپټـې] لوپټـه، پُـونۍ، د زنانـاؤ څادر

**دُوپچن** :ـ (دُوْ+پْ+چَ+نْ+) [پ، ص ،مذ (مؤ ،وا : دُوپچنه ،ج : دُوپچنې] و - دُوبجن.

**دوپچنول**:- (دُوْ+پْ+چَ+نَ+و+لْ)، [پ،مص متا] ،و-دُوبجنول-

**دوپچنونه**:- (دُوْ+پْ+چَ+نَ+و+نَه)، [پ،حمص] ،و-دُوبجنونه-

**دُوپچنېدل**:- (دُوْ+پْ+چَ+نې+د+لْ)، [پ،مص لا]، و-دُوبجنېدل-

**دُوپچنېدنه**:- (دُوْ+پْ+چَ+نې+د+نَه)، [پ،حمص]، و-دُوبجنېدنه-

**دُوپچنېـــــدُونکے** :- (دُوْ+پْ+چَ+نـــې+دُوْ+نْ+کےَ)، [پ،مـــف ،مـــذ ،وا ، ج: دُوپچنېدُونکي، مؤ: دُوپچنېدُونکې] ،و-دُوبجنېدُونکے-

**دُوپړ**:- (دُوْ+پَ+ړْ)، [پ،اس،مذ] (۱)مُصیبت،پرېشاني-(۲)بکواس کوُونکے، عبث رغبدوُونکے،دُوپړک-

**دُوپړک**:- (دُوْ+پَ+ړَ+کْ) ، [پ،اس،مذ] و-دُوپړ-

**دُوپـــړه**:- (دُوْ+پَ+ړَه)، [پ،اس،مـؤ،وا،ج:دُوپړې،دُوپړې] ، دُوپړې،دُوکـړه، دوکړې،دبلې-

**دُوپړه مار**:- (دُوْ+پَ+ړَه+ما+رْ)، [پ.اس ص،مذ ،(مؤ،وا:دُوپړه ماره،ج:دُوپړه مارې)]، دُوکړه مار،دبلي مار،دُوپړے وهُونکے-

**دُوپړه** :ـ (دُوْ+پُ+رَه) ، [پ (خل) اس ، مؤ] دُوبره ، تتنه شیشه ـ

**دُوپړې** :ـ (دُوْ+پُ+ړِ+ی)، [پ، اس ، مؤ] و - دُوپړه ـ

**دُوپـړي** :ـ (دُوْ+پُ+ړِيْ)، [پ، اس ، مـؤ] بېـهـودګي، نـا کـاره والے، پوهړتـوب، خوشي توب، کم عقل تیا ـ

**ـــ کول** :ـ اص ،بېهودګي کول، پوهړتوب کول، کم عقلتیا کول ـ

**دوپړي** :ـ (دُوْ+پُ+ړِيْ)، [اَف : (قاموس) اس ، مؤ] د لوړې د مرض ذلت ـ

**ـــ نیول** :ـ (اَف) اص ،د لوړې مرض لګېدل ـ

**دُوپن** :ـ (دُوْ+پَ+نْ)، [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ] د زناناؤ نبغ وبېنتهٔ ـ

**دوپوړه** :ـ (دُوْ+پُوْ+رَه)، [اَف : پ (قاموس) ص] دوه ځله، دوه واړه ـ

**دوپُوړه** :ـ (دو+پُوْ+رَه) ، [ پ ، ص] دوه چتیز ـ

**دوپه** :ـ (دو+پَه)، [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و - دوبه ـ

**ـــ سرے** :ـ اص ،بې اعتباره بنیادم ـ

**سرے دوپه کول** :ـ اص، څوک په لوبه کښې لره ول ـ

**شے ځنې دوپه کول** :ـ اص ، د چانه په چل ول څهٔ څیز اخستل ـ

**دُوپه دُوپیا**:ـ (دُوْ+پَه+دُوْ+پْ+یا) [پ ، ص ، مؤ] دجس او خُوپ خالت ـ

**ـــ کېدل** :ـ اص ،خوپ زیاتېدل، جس زیاتېدل ـ

**دوتر** :ـ (دَو+تَ+رْ)، [پ، اس ،مذ، وا، ج : دوترُونه] و - دفتر ـ

**دوتنه**:ـ (دَو+ت+نَه) [اَف : پ (قـاموس) اس، مؤ ،وا ،ج : دوتنې] د کتـاب وزر، قایه

**دو تنیار** :ـ (دَو+تَ+نْ+یا+رْ) [اَف : پ (قـاموس) اس، مذ (مؤ، وا، دوتنیـاره ،ج : دوتنیارې] جلد ساز،کتاب ته کاتټې یا جَلدُونه خېژووُنکے ـ

**دوجالـه**:ـ (دُوْ+جا+لَـه)، [پ ، ص] فکـرجن، دوهٔ زړے، پـه دوؤ کښـې ګېـر، مذبذب

چـې پـټ راز د مـحبت راته ښکاره شو
خـدا ے دې نهٔ کا چې به بیا دوجاله یم زهٔ (عبدالعظیم)

**ـــ کښې اچول** :ـ اص ،دوجاله کښې غورځول، په دوؤ کښې حېرانول ـ

**ـــ کښې غورځول** :ـ اص، و - دوجاله کښې اچول ـ

**ـــ کول** :ـ اص، فکر جن کول، دوهٔ زړے کول، مذبذب کول ـ

**ـــ کېدل** :ـ اص ،فکرجن کېدل، دوهٔ زړے کېدل، مذبذب کېدل ـ

**دوچنـد** :ـ (دو+چَ+نْ+دْ)، [فـا ، ص ،مـذ ،(مـؤ، وا، : دوچنـده ،ج : دوچنـدې)] دوګوته، دوه غبرګ ـ

**دوچـه** :ـ (دُوْ+چَه)، [اَف :پ (قـاموس) اس ، مـؤ] ډولچـه، بوقـه چې د لرګـي نـه جوړه وي، د لرګي کنډولے ـ

**دوڅار** :ـ (دو+تْ+سا+رْ) ، [پ ، ص] مخامخ پېښ ـ

له دېښنونه د ښادې طمع څوک څهٔ کا
چې د دوست له لاسه غم شي وردوڅار (رحمٰن)

**ـــ کول** :ـ اص ،څوک پېښې ته مخامخ کول، څوک ګرانې ته مخامخ کول ـ

نیک ساعت په بد بدل د هیچا مه شه
په وصال کښې غم د هجر وردوڅار کا (رحمٰن)

**ـــ کېدل** :ـ اص ،ګرانې ته مخامخ کېدل، ګرانې ته پېښېدل ـ

سل غندنې پېغورونه دا دوڅار شول
چـې بـه ځان ساتهٔ همېش له ذمه ما (خوشحال)

**دوختنــے** :ـ (د+وَ+خْ+تَ+نـےَ) [پ ، ص ،مـذ ،وا ،ج : دوختنـي ،مـؤ : دوختنـې] وختنے، پخوانے، مخکینے ـ

**دوخته** :ـ (د+وَ+خْ+تَه)، [پ ، ص ] وختې ـ

**دوخړه** :ـ (دُوْ+خ+رَه) [پ، اس ،مؤ، وا، ج : دوخړې] لُوخړه ـ

**دُود** :ـ (دُوْ+دْ)، [فا ، اس ، مذ] (۱) لوګے ـ

مــــې بـایـد د یار طلب په ترک وجود
نـــالـــه ناره دے ببل کړے دغه دُود (حمید)

(۲) قربان، ځار، صدقه ـ

**ـــ کول** :ـ اص، قربانول،ځارول،صدقه کول، لوګے کول ـ

**ـــ کېدل** :ـ اص، لُوګے کېدل، قربانېدل، ځارېدل، صدقه کېدل ـ

**دود** :ـ (دو+دْ) ، [پ، اس، مــذ ، وا ، ج : دودُونــه] (۱) دســتور، رواج، رســم ،عادت ـ

څهٔ ګنده عالم د ے مه ئې دودو ے مه ئې رسم
وړ ے پـــه ځـــا ے پـرېـږدي ومړوته صلا کا (خوشحال)

(۲) په شان ـ (۳)داج،(۴)طریقه،ډول-

زهٔ رحمٰن په زړهٔ نرے کړم هغه جُونو
چې ئې ملا وي د وینبتهٔ په دود نرې

**بې دوده** :ـ اص، بې طریقې، بې ډوله، بې ډبه ـ

مـا بې دوده توسني کړه منجبدلم
عاقــبـت ئـې په کندو ځکېږلم (خوشحال)

**دودبائده**:ـ (دود+با+ې+ده)[پ ، اس ، ج] د وادهٔ دودُونه دستورې ـ

**ـــ کول** :ـ اص ،د وادهٔ رسمُونه رواجونه کول ـ

**دودکه** :ـ (دو+د+کَه) ،[اَف :پ (قاموس) اس ، مؤ] یو بُوټے چې پاڼې ئې د ګاځرې په شان وي، په شګو کښې کېږي، وېخ ئې سپین وي چې په شودو کښې پخولے شي او خوند ئې ډېر ښهٔ وي ـ

**دودل** :ـ (دو+د+لْ)، [اَف : پ (قاموس) ص] دل، نیم مات ،دلیه-

**ـــ کول** :ـ اص ،دل کول، دلیه کول، لواړ وړول ـ

**دودول** :ـ (دو+د+ولْ [اَف :پ (قــاموس) مــص مــت] (۱) دود ورکــول، رواج ورکول، دستور جوړول-(۲) چاته غصه کول، پـه ا سختي کول ـ

**دُودول** :ـ (دُوْ+د+و+لْ) [اَف :پ (قاموس) مص مت] په اور کښېښول، ګرمول ـ

**دودولــے** :ـ (دو+د+و+لَـے) [اَف :پ (قـاموس) مـف ،مـذ ،وا ، ج : دودولـي ، مـؤ : دودولې] چاته چې غصه شوے وي، زورلے ـ

**دُودولــے** :ـ (دُوْ+د+و+لَـے)[اَف :پ (قـاموس) مـف، مـذ ، وا ،ج : دودولـي، مـؤ : دودولې] په اورګرم کړے شوے ـ

**دودونګ** :ـ (دو+د+وَ+نْ+ګْ)[اَف : پ (قاموس) حمص] (۱) دودونه ،دود ورکونه ،رواج ورکونه، دستور جوړونه-(۲) چاته غصه کونه، پـه چا سختي کونه

**دُو دونــګ** :ـ (دُوْ+د+وَ+نْ+ګْ) [اَف :پ (قـاموس) حمـص] پـه اور کښېښـونه، ګرمونه ـ

**دودونه** :ـ (دو+د+و+نَه) [اَف :پ (قاموس) حمص] و - دودونګ ـ

**دُودونه** :ـ (دُوْ+دو+نَه)[اَف : پ (قاموس) حمص] و- دُودونه ـ

**دودووُنکــے** :ـ (دو+د+وُو+نْ+کـےَ) [اَف :پ (قــاموس) فــاع، مــذ ، وا ، ج : دودووُنکي، مؤ : دودووُنکې] (۱) دود ورکووُنکے، رواج ورکوونکے ، دسـتور جـوړووُنکے-(۲) چاتـه غصـه کـووُنکے ،زوروُنکـے ،پـه چـا سختي کووُنکے ـ

**دُود وُونکے** :ـ (دُوْ+دْ+وُوْ+نْ+کَے) [اَف :پ (قاموس) فاع ،مذ ،وا ، ج : دُودوُونکي، مؤ : دُودووُنکې] په اور کښېښووُنکے، ګرمووُنکے ـ

**دودي** :ـ (دو+دِيْ)، [پ ، اِس ، مؤ] د اُوړو نرم توب چې ښوروا يا پېتۍ ته ئې اچوي

ـــ **جوړول** :ـ اِص، د اُوړونرم اتوب جوړول، دودي کول ـ

ـــ **کول** :ـ اِص، و - دودي جوړول ـ

**دودي** :ـ (د+وَ+دِيْ) ، [اَف : پ (قاموس) ص] فائده من، ګټه ور ـ

**دُوديالے** :ـ (دو+دْ+يا+لَے) ، [اَف :پ (قاموس) اِس، مذ ، وا ، ج : دوديالي،مؤ : دوديالۍ] په دود دستور پوهه.

**دودېدل** :ـ (دو+دې+د+لْ)، [اَف :پ (قاموس) مص لا] (۱) دود ورکېدل،رواج کېدل، دستور کېدل.(۲) چاته غصه کېدل، زورېدل ـ

**دُودېدل** :ـ (دُوْ+دې+د+لْ) ،[اَف : پ (قاموس) مف ، مذ ، و ،ج :دودېدلي،مؤ : دودېدلې] په اورکښېښولے کېدل، ګرمېدل ـ

**دودېدلے** :ـ (دو+دې+د+لَے) ، [اَف : پ (قاموس) مف، مذ ، وا ،ج : دودېدلي مؤ :دودېدلې] (۱) دود ورکړے شوے، رواج جوړ شوے. (۲) چاته غصه شوے، سوخت شوے، زورېدلے ـ

**دُودېدلے** :ـ (دُوْ+دې+د+لَے) ،[اَف :پ (قاموس) مف، مذ ،وا ، ج : دُودېدلي ،مؤ : دودېدلې] په اور کښېښودلے، ګرم شوے ـ

**دودېدنګ** :ـ (دو+دې+دَ+نْ+ګْ)، [اَف :پ (قاموس) حمص] (۱) دودېدنه، رواج جوړېدنه (۲)چاته غصه کېدنه، سُوختېدنه ـ

**دُودېدنګ** :ـ (دُوْ+دې+دَ+نْ+ګْ)، [اَف :پ (قاموس) حمص] دُودېدنه ،په اور کښېښودے کېدنه،ګرمېدنه ـ

**دودېدنه** :ـ (دو+دې+د+نَه) [اَف :پ (قاموس) حمص] و - دودېدنګ ـ

**دودېدنه** :ـ (دُوْ+دې+د+نَه ) ، [اَف :پ (قاموس) حمص]و - دُودېدنه ـ

**دودېدُونکے**:ـ (دو+دې+دُوْ+نْ+کَے) [اَف :پ (قاموس) مف، مذ ، وا ، ج : دودېدُونکي، مؤ : دودېدُونکې](۱) دودکېدوُنکے، دستور کېدوُنکے، رواج موندُونکے.(۲) چاته غصه کېدوونکے ،سُوختېدونکے ـ

**دوودېدُونکے** :ـ (دُو+دې+دُوْ+نْ+کےَ)، [ا ف : پ (قاموس) مف، مذ ، وا ، ج : دودېدونکي ،مؤ : دودېدونکې] په اور کښېښولے کېدوُنکے، ګرمېدوُنکے

**دُور** :ـ (دُوْ+ر)، [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ] دُوړ، نخۍ، لمڅي او قالينونه جوړووُنکے ـ

**دور** :ـ (دَو+رْ) ، [فا ، اِس ،مذ ، وا ،ج : دورُونه] (۱) زمانه، وخت، دوران ـ

تهٔ محبوبه که شيرينه د دې وخت ئې
زهٔ خوشحال د اوسني دور کوهکن يم

(۲) چکر ـ

ـــ **چلېدل** :ـ اِص، جاري کېدل، چکر چلېدل ـ

**په دا دور** :ـ اِص، په دې زمانه ،په دې وخت، نن پرون ـ

لکه يار چې مې څرګند دے په جهان کښې
زهٔ هم هسې په دا دور کښې شوم څرګند (رحمٰن)

**دوران** :ـ (دَو+را+نْ) ، [فا ، اِس ، مذ] و - دَور ـ

هسې تېز دُرومي دوران
ګويا برق دے درخشان (رحمٰن)

ـــ **تېرېدل** :ـ اِص ، (۱) د چا ښهٔ دور ختمېدل.(۲) بُوډا کېدل ـ

ـــ **راتلل** :ـ اَص ، (۱) په چاښې ورځې راتلل،دچاشپه ورځ ښهٔ کېدل.(۲) دځوانۍ بوئي اخستل ـ

**دُور اندېش** :ـ (دُوْ+رْ+اَ+نْ+دې+شْ) ، [فا ، اِس، ص، مذ ، (مؤ ،وا : دوراندېشه ،ج :دوراندېشې] هغه څوک چې نظر ئې تر لرې پورې لګي.

په هر ځاے لګي نظرد دور اندېشو
په ديدهٔ ئې هر مژګان لکه دُوربين (کاظم خان شيدا)

**دُوربه** :ـ (دُوْ+رْ+بَه) ، [اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ] زُول، جړۍ ـ

**دُوربين** :ـ (دُوْ+رْ+بِي+نْ)، [فا ، اِس ،مذ ، وا ، ج : دُور بينُونه] ـ هغه اٰله چې د لرې څيزونه نزدې ښئي ـ

ـــ **لګول** :ـ اِص ،(۱) په دُوربين کښې صحيح کول.(۲) چاته په فکر او توجه کتل ـ

**په دُوربين کښې ليدل**:ـ اِص،د دُوربين په مدد څهٔ څيز په نظر راتلل ـ

**په دُوربين کښې په نظرنهٔ راتلل** :ـ اِص ،بلکل نهٔ ښکاره کېدل ـ

**دُوردمه** :ـ (دُوْ+رْ+دَ+مه)، [اَف :پ (قاموس) ، ص] طاقتور، قوت ناک، تکړه ـ

ـــ **کېدل** :ـ اص ،طاقتور کېدل، قوت ناک کېدل، مظبوطېدل ـ

**دُورسي** :ـ (دُوْ+رْ+سِيْ)، [اَف :پ (قاموس)اِس] د دروازې بسته ـ

**دُورشل** :ـ (دُوْ+رْ+شَ+لْ) ، [پ، اِس، مذ ، وا ، ج : دُورشلُونه] و- دُرشل ـ

**دورشلې** :ـ (دُوْ+رش+لې)، [پ (خَ) ص] د ښځو جنګ ـ

ـــ**کول** :ـ اِص، د ښځو يوې بلې سره تود جنګ کول ـ

**دُورګه**:ـ (دُوْ+ر+ګَه) ، [پ (شن) ، ص] دوه رګے،نيم ګړ، نيمچه، دوغله ـ

**دُورمال** :ـ (دُوْ+رْ+ما+لْ)،[اَف : پ (قاموس) اِس، مذ ، وا ،ج : دورمالُونه]د خميار هغه اوزار چې پيرزار پرې ټکوي او مظبوطوي ـ

**دُورمټ** :ـ (دُوْ+رْ+م+ټْ) ، [پ، اِس، مذ ،وا ،ج : دُورمټونه] دُرمټ ،هغه اٰواز چې زمکه پرې اوارولے شي ـ

**دُورمه**:ـ (دُوْ+رْ+مَه) [اِس، مؤ ،وا ،ج : دُورمې] (۱) دُرمه، پخه،نل، کهے، کړکے

هېڅ حساب به ئې په هېڅ ځنګل کښې نهٔ وو
که دُورمې واړه ګني د هندوستان وے خوشځال)

(۲) د ايوې د لرګي هغه حصه چې يو خوا دغشي سره پيوند کړې شوې وي او بل خوا د جغ سره تړلے شي ـ

سپے دُورمه چيچي د غشي
پړانګ حمله په تيرانداز کا (خوشحال)

**دوروسته** :ـ (د+و+رُو+س+تَه) ، [پ ، ص] شاته، روستو ـ

**دوره** :ـ (دو+رَه) ، [پ، (قاموس) ص] له ورايه، له لرې ـ

**دُوره** :ـ (دُوْ+رَه ) ، [پ، اِس، مؤ، وا ، ج : دورې] (۱) دتانګې، چکړې يا دګاډي د پهيو د يو بل سره د يو ځاے کولو اوسپنه.(۲) د څرمنې هغه پلن چابک چې ګناه ګار پرې وهلے شي، دُره ـ

ساقي ترس د محتسب د دُورې نشته
چې بابائې د مجلس سره مېنوش دے (خوشحال)

**دوره** :ـ (دَو+رَه)، [پ ، ص] دومره، دې قدر، دغه هومره ـ

**دوره** :ـ (دَو+رَه)، [ع، اِس، مؤ ،وا ،ج : دورې] (۱) چکر، د حاکمانو په خپله علاقه کښې ګرځېدنه.(۲) دوهرائي، تکرار، دسره يادونه.(۳) غُوټه.(۴) د اسلامي نصاب ختمونه ـ

ـــ **جوړېدل** :ـ اِص ،د چا حاکم د دورې پروګرام جوړېدل ـ

ـــ **راتلل** :ـ اِص ،په چا د بيمارۍ غُوټه راتلل ـ

ـــ **کول** :ـ اِص ،(۱) د چا حاکم خپلې علاقې ته د جاج اخستو دپاره تلل.(۲) سبق تکرارول، سبق د سره يادول.(۳) په اسلامي دارالعلوم کښې نصاب ختمول

ـــ **کېدل** :ـ اِص ،(۱) د چا حاکم خپلې علاقې ته د جاج اخستو دپاره راتلل. (۲) سبق تکرارېدل، سبق دسره يادېدل(۳) په اسلامي

دارالعلوم کښې نصاب ختمېدل

**په دوره تلل**:۔ اص، د چا حاکم خپلې علاقې ته د جاج اخستو دپاره روانېدل۔

**په دوره راتلل**:۔ اص،د چاحاکم خپلې علاقې ته د جاج اخستو دپاره راتلل۔

**دُوري**:۔ (دُوْ+رِي)، [پ (ب،خ)حرف] هلته ،ديري۔

ناست دے لکه څري رقيبان وخوار عاشق ته
څکه ستاله مخه لري هوري دوري سترګي (خوشحال)

**دُوري کېدل**:۔ اص، اخوا دېخوا کېدل، لري لري کېدل، بېکاره کېدل۔

**دُوري هُوري**:۔ اص ،اخوا دېخوا، هُورته هيشته۔

**آلې دوري کېدل**:۔ اص ،(۱) عبث ګرځېدل، بې مطلبه اخوا دېخوا ګرځېدل۔ (۲) ځاے پرېښول۔

**دورينه**:۔ (دُوْ+رِيْ+نَه)، [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ] دُرّه ، دُوره۔

**دورينه خت**:۔ (دُوْ+رِيْ+نَه+خَ+تْ)، [اَف :پ (قاموس) اس ، مذ] ټوپۍ کونه ، ماشومانو لوبه چې په غُنډه دائره کښې ناست وي يو ماشوم تاؤ کړے څادر په پټه د چا هلک شاته کېږدي که هغه ئې اونه ويني نو بيا ئې دبروهي او د دائرې چاپېره يو چکر ورکوي۔

**دُورينه شمال**:۔ (دُوْ+رِيْ+نَه +ش+مَا+لْ ، [اَف :پ (قاموس) اس ، مذ] يوه مشهوره لوبه۔

**دَوړ**:۔ (دَ+وَ+ړْ)، [پ، اس معرفه ،مذ (مؤ ،وا : دوړه، ج : دَوړې] (۱) د کراچي دنسله يوه قبيله۔(۲) د دَوړ قبيلې سړے۔

**دُوړ**:۔ (دُوْ+ړْ) ، [پ، اس، مذ، وا، ج : دُوړان (مؤ ،وا : دُوړه، ج : دُوړې] (۱) دَوړ ، هغه کسب ګر چې نخۍ قالينونه جوړوي۔

چې هر دُوړئي و وو دو ته هوس کاندي
د زربفتو هنر چيرې دے اسان (خوشحال)

(۲) دروغجن، دروغژن۔

**د وړاندي**:۔ (د+وْ+ړا+نْ+دي)، [پ ، حر ف] مخکښې، په مخ کښې۔

**دُوړاوُو**:۔ (دُوْ+ړا+وُوْ)، [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ] يو قسم سبزي چې بې روغنه پخولې شي او د مالګې سره خورلے شي۔

**دُوړدُوړکه**:۔ (دُوْ+ړْ+دُوْ+ړ+کَه)، [اَف : پ (قاموس)اس، مؤ، وا، ج : دُوړدوړکې] برېوکۍ، بُوربورکۍ، د پېريانو ډولۍ، بُونواله۔

**دُوړژنه**:۔ (دُوْ+ړْ+ج+نَه) ، [پ ، ص] چې دُوړه او ګرد پرې پروت وي۔

**دُوړن**:۔ (دُوْ+ړ+نْ)، [پ، اس، ص، مذ ، (مؤ ،وا : دُوړنه ،ج : دُوړنې] (۱) خبرلوڅ۔(۲) دروغژن۔

**دُوړنګ**:۔ (دُوْ+ړ+نْ+ګْ) ، [پ (ګن) اس ،مذ ،وا ،ج : دُوړنګان] (۱) خرېړے، خُمبه۔(۲) د چرګ پښه يا اُوږد پټون۔

**دُوړولے**:۔ (دُوْ+ړ+و+لےَ) ، [پ، مف، مذ ،وا ،ج : دُوړولي، مؤ : دُوړولې] څهٔ مېده څيز لړ لړ اچولے لکه مالګه مساله وغېره۔

**دُوړونګ**:۔ (دُوْ+ړ+وَ+نْ+ګْ)، [اَف :پ (قاموس) حمص] دُوړونه څهٔ مېده څيز لړ لړ اچونه، لکه مالګه مساله وغېره۔

**دُوړنه**:۔ (دُوْ+ړ+و+نَه)، [پ ، حمص] و - دُوړونګ۔

**دُوړووُنکے**:۔ (دُوْ+ړ+وُوْ+نْ+کَے) ، [پ، فاع، مذ، وا، ج : دُوړووُنکي، مؤ : دُوړووُنکې] ۔ څهٔ مېده څيز لړ لړ اچووُنکے لکه مالګه مساله وغېره۔

**دُوړه**:۔ (دُوْ+ړَه)، [پ، اس، مؤ، وا ، ج : دُوړې] (۱) ګرد۔

وارو دوړو سره فوځ د سورو نهٔ وي
په جهان کښې لږې نهٔ دي تشې دُوړې (خوشحال)

(۲) اُوړه دانه ،ديره۔(۳) د غاښونو دوائي۔(۴) منده ،دروه۔

**ـــــ اغېزل**:۔ اص، اُوړهٔ اخښل، دُوړه لمدول۔

**ـــــ انېل**:۔ اص، اوړهٔ مېده کول، دُوړه وړول۔

**ـــــ اوچتېدل**:۔ اص ،دُوړه پورته کېدل، ګردختل۔

**ـــــ پورته کول**:۔ اص،(۱) ګرد جوړول۔(۲) ګرد ښنډل۔(۳) سخته سزا ورکول (۴) بې عزته کول۔

**ـــــ پورته کېدل**:۔ اص ،و-دُوړه اُوچتېدل۔

**ـــــ چڼل**:۔ اص ،اُوړهٔ چاڼ کول، اُوړهٔ د غلبېل نه ايستل، دُوړه صفا کول۔

**ـــــ څنډل**:۔ اص ،ګرد صفا کول ،دُوړه لرې کول، جامې د ګرد نه صفا کول۔

**ـــــ کول**:۔ اص ،(۱) لرې کول، د نوکرۍ يا د يو ځاے نه ويستل،ختمول۔ (۲) خرڅ کول، لګول، بربادول۔

**ـــــ کېدل**:۔ اص، (۱) لرې کېدل، د نوکرۍ يا د يو ځاے نه ايستلے کېدل، ختمېدل۔(۲) خرڅ کېدل لګېدل، بربادېدل۔

**ـــــ لمدول**:۔ اص، و - دُوړه اغېزل۔

**ـــــ وړول**:۔ اص، و - دُوړه انېل۔

**په دُوړه**:۔ اص ،په منډه، په دَو، په تېزۍ۔

**په دُوړه ايستل**:۔ اص ،ډېر په بېړه څوک د کوره يا د کارنه بهر کول۔

**په دُوړه راتلل**:۔ اص ،په منډه راتلل، زر زر راتلل۔

**په دُوړه کول**:۔ اص، وړره کول، په منډه اخستل،په مخه کول۔

**په دُوړه کېدل**:۔ اص، په منډه زغابتل، په تېزۍ له ځايه تلل۔

**دُوړې په ايستل**:۔ اص، (۱) څهٔ کار سرته رسول۔(۲) بربادول، تباه کول۔

**دُوړې ترې ايستل**:۔ اص، (۱) څنډل ،صفا کول۔(۲) څوک سم برابرول،زيات وهل ټکول (څوک په منډه زغلول۔

**دوړې ختل**:۔ اص ،ګردُونه اُوچتېدل۔

**دُوړې دُوړې**:۔ اص، ډېر زيات ګردونه۔

ټول ګردونه دُوړې دوړې
ډېرانونه ډيرانونه (پرېشان خټک)

**دُوړې کول**:۔ اص ،د څهٔ څيز ګرد اخستل،ګرد پورته کول۔

**دوړې کېدل**:۔ اص، ګرد پورته کېدل۔

**دوړه**:۔ (دو+ړَه)، [پ ،اس ،مؤ، وا ، ج : دوړې] (۱) غټه خبره، دونه، لاپه ويشته، دوزه، ډُوزه۔(۲) ټوقه مسخره۔

**دوړې ويشتل**:۔ اص، (۱) لاپې وهل، غټې خبرې کول۔(۲) ټوقې مسخرې کول۔

**دوړه مار**:۔ (دو+ړَه+مَا+رْ)، [پ، اس، ص، مذ ،وا ،ج : دوړه ماران ،(مؤ، وا : دوړه ماره ،ج : دوړه مارې] (۱) دونه مار، لاپې ويشتونکے ،غټې خبرې کوونکے ،(۲) ټوقمار، مسخره۔

**دوړه مارې**:۔ (دو+ړَه+مَا+رِيْ [پ، اس ، مؤ] (۱) لاپې ويشتنه، غټې خبرې کونه۔(۲) ټوقې مسخرې کونه۔

**دوړئې**:۔ (دَو+ړ+ئې) [اَف :پ (قاموس) اس ،مؤ] دينار، د سرو زرو سکه۔

**دوړې**:۔ (دَو+ړَې) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ] څرمن، چمړه۔

**دوړې**:۔ (دُو+ړې)، [اَف :پ (قاموس) اس ، مؤ] د پخې ډوډۍ هغه ټوټه چې په تبغنه يا تنور باندې پاتې شي۔

**دُوړيت**:۔ (دُوْ+ړِيْ+تْ) ، [اَف :پ (قاموس) اس ، مذ] بې ځايه ګردش۔

**ـــــ کول**:۔ اص ،بې ځايه ګردش کول۔

**دُوړېدل**:۔ (دُوْ+ړِې+د+لْ) ،[پ ، مص لا] (۱) څهٔ مېده څيز لړ لړ اچولے کېدل۔(۲) راغورځېدل۔(۳) په بيمارۍ کښې ډېر کمزورے کېدل۔

**دُوړېدلے**:۔ (دُوْ+ړِې+د+لےَ)، [پ، مف، مذ ، وا ، ج : دُوړېدلي، مؤ : دُوړېدلې] (۱) څهٔ مېده څيز لړ لړ اچولے شوے۔(۲) راغورځېدلے۔

زهٔ خزان وهلې ونه دُوړېدلې دړدېدلې
نن مې هغه پاڼه لاړه چې لاته وه رژېدلې (پرېشان خټک)

(۳) په بيمارۍ کښې ډېر کمزورے شوے۔

**دُوړېـدنګ** :- (دُوْ+ړې+دَ+نْ+ګْ)، [اَف : پ (قـاموس) ، حمـص] (۱) دُوړېدنـه ،دُوړېدۀ، څۀ مېده څيـز لـړلـړ اچولے کېدنـه.(۲) راغورځېدنـه.(۳) پـه بيمارئ کښې ډېر کمزورے کېدنه۔

**دُوړېدنه** :- (دُوْ+ړې+دَ+نَه) ، [پ ، حمص] و - دُوړېدنګ ۔

**دُوړېـدونکے** :- (دُوْ+ړې+دُوْ+نْ+کےَ)[پ، مـف، مـذ، وا ، ج : دوړېـدُنکي، مـؤ : دُوړېـدونُکې] (۱) څـۀ مېـده څيــز لـړلـړ اچـولے کېـدونُکے.(۲) راغورځېدونُکے. (۳) په بيمارئ کښې ډېر کزوره کېدُونکے۔

**دُوړېدۀ** :- (دُوْ+ړې+ده) ، [پ ، حمص] و - دُوړېدنګ۔

**دوزار** :- (دُو+زا+رْ)، [پ (مر) ،اس ، مذ] جوار ۔

**دوزبـان** :- (دو+زَ+با+نْ)[فـا ، ص ،مذ (مؤ، وا : درزبانـه ،ج : دوزبـانې] دوه ژبے، منافق ۔

ځارتر يکرنګي چې زړۀ ئې يو، يوئې اقراروي

هــرچې دوزبـــان وي خپل غمونه دوباره کا (خوشحال)

**دوزخ** :- (دو+زَ+خْ)، [فـا ، اس، مـذ ، وا ، ج : دوزخُونـه] (۱) جهـنم، دوزخ، اور ۔ (۲) سخته ګرمي ۔(۳) سخت ځاے ۔

خـلق وائي چې دوزخ شته پس لـه مرګه

په حيات صورت دوزخ نۀ دے فراق ستا (خوشحال)

(۴) خېټه ،ګېډه ۔

**ـــ ډکول** :- اص ،خېټه ډکول، په مرئ ځان مړول۔

**په دوزخ کښې داخلېدل**:- اص، په ډېر زيات تکليف کښې ګېر ېدل ۔

**د دوزخ تاؤ** :- اص ،د دوزخ اور ، ډېر تېز اور ۔

**د دوزخ عذاب** :- اص، د دوزخ سختي، د دوغښ کړان۔

د دوزخ عذاب ژوندو ليدلے نۀ دے

ماتــه پېښ په ژوندانۀ شه دا عذاب (عبدالعظيم)

**د دوزخ لمبې** :- اص ،د دوزخ سختي، د دوزخ اور د دوزخ شُغلې ۔

د دوزخ د لـمبې امـن پـه دانـــۀ شــي

چې ښۀ اوشوري ښۀ واغوندي ځان ستائي (حميد)

**د دوزخ نمونه** :- اص، د تکليف ځاے ۔

**ژوند دوزخ کېدل**:- اص، ژوند ګرانېدل، شپې ورځې په سختئ کښې تېرول۔

**دوزخــي** :- (دو+زَ+خـيْ) ، [پ، اس ، ص ،مـذ ، وا ، ج : دوزخيـان] جهنمـي، ګنهګار ، دوغښي۔

**دُوزه** :- (دُوْ+زَه)، [پ، اس ،مؤ ،وا ، ج : دوزې] ډُوزه، غټه خبره، لاهه ۔

**ـــ ويشتل** :- اص ، ډُوزې ويشتل، لاهې کول، غټې خبرې کول۔

**دوژبين** :- (دو+ژَ+بيْ+نْ)، [پ ، ص] دوه ژبے ،دوه ژنګے، منافق ۔

**دوسپنه** :- (دو+سْ+پ+نَـه)، [اَف: پ (قـاموس) اص ، مؤ] (۱) زولنـه، زنځيـر۔ (۲) (افر) د ټوپک د کُوترې چاپېره اوسپنه، ټربګرګارډ ۔

**ـــ کول** :- اص ،زولنئ وراچول، په زنځير تړل، سختول۔

**دوسـت** :- (دو+سْ+تْ)، [فـا ،اس، مـذ ،وا ،ج : دوسـتان (مـؤ ،وا : دوسـته ،ج : دوستې يا دوستانې] ملګرے، يار، اشنا، خبرخوا ۔

که غليم لره ئې ورکړې

غليم دوست کا په هوا (رحمٰن)

**ـــ جوړول** :- اص ،دوست کول، ملګرے کول ،اشنا کول ،دوست نيول۔

**ـــ کول** :- اص ،و - دوست جوړول۔

**ـــ نيول** :- اص، و - دوست جوړول۔

**دوســتانه** :- (دو+سْ+تا+نَـه)، [فـا ،اس ،مـؤ ،وا ، ج : دوســتانې]ملګرتيا، دوستي، ياري اشنائي۔

**دوست دښمن**:- (دو+سْ+تْ+دُ+ښْ+مَ+نْ) [پ، اس مرکب] خپـل پـردے ، اشنا او غېر۔

زۀ رحمٰـن لـه چـا شـکوه شـکايت نـۀ کـړم

نشـتـه بـل دوسـت او دښـمن زمـا بـې تـا

**دوستي** :- (دو+سْ+تيْ) ، [فا ، اس ، مؤ] (۱) ملګرتيا، اشنائي ۔

پــه دوســتئ کښې نـزديکت د زړۀ اخلاص دے

تـفـاوت پـکـښې د کـروه او جـريب نشته (عليخان)

(۲) خپلوي، رشته ۔

**ـــ بڼل** :- اص، (بن) دوستي جوړول ۔

**ـــ پرېښول** :- اص ،دوستي ختمول، د يارئ خيال نۀ کول، دوستي پرېکول ۔

**ـــ پرېکول** :- اص، و - پرېښول۔

**ـــ جوړول** :- اص، ياري جوړول، خپلوي جوړول، خپلول، راشه درشه ته لار خلاصول۔

**ـــ شـرمول** :- اص، په دوستئ کښې دوکه او دروغ کول ،په اشنائئ کښې پرېوتے کارکول۔

**ـــ شروع کول** :- اص، دوستي جوړول ۔

**ـــ شړل** :- اص،د دوستئ حق پُوره کول ،ديارئ کار ترسره کول۔

**ـــ کول** :- اص ،(۱) ياري کول، اشنائي کول۔

دښمن هم د سړي کله کله دوست شي

دوستي نۀ کړي د رحمان سره حبيب

(۲) خپلوي کول، رشته جوړول۔

**ـــ کېـدل** :- اص ،(۱) يـاري کېـدل، اشنائي کېـدل.(۲) خپلـوي کېـدل، رشته کېدل۔

**په دوستئ نيول** :- اص ،دوست جوړول، اشنا کول، يار شمارل ۔

**دُوسخانه** :- (دُوْ+سَ+خا+نَه) [اَف : پ (قاموس) اس، مؤ ،وا ،ج : دوسخانې] د غلې د ذخيره کولو ځاے، د غلې انباريا ګودام۔

**دوسکونه** :- (دُ+و+س+کُوْ+نَه) [اَف : پ (قاموس) ص] دوه ګندې ، دوه غاړې ۔

**دوسندے** :- (دو+س+نْ+دےَ)، [پ ، ص ، مذ] دوه غړيز ،دوه ژبين ۔

**دُوسه** :- (دُوْ+سَه)، [پ، اس، مؤ، وا ، ج : دُوسې] زور زياتے، جبر ۔

**ـــ چلول** :- اص، زور زياتے کول، جبر کول۔

**ـــ کول** :- اص ،و - په زور زياتي چانه څۀ تروړل، دُوسه وهل۔

**ـــ وهل** :- اص، و - دُوسه کول۔

**دوسئ** :- (دو+س+ى) ، [پ ، اس ، مؤ] (۱) د چا خلاف خپلو کښې يو کېدل۔ (۲) منافقت ۔

چې پائې بندئ کړم د زلفو په رسئ

راتـه جوړې شوې د غم اندوه دوسئ (علي خان)

**ـــ جوړول** :- اص ،(۱) د چا خلاف سازش کول.(۲) منافقت کول۔

**ـــ جوړېدل** :- اص ،(۱) د چا خلاف سازش کېدل.(۲) منافقت کېدل۔

**دوشاله** :- (دو+شا+لَه) ، [فا ، اس ،مؤ ،وا ، ج : دوشالې] پټو، ګرم څادر ۔

مـــا وې عـــېن ګـنـه ګـل دے دغنچې په لمن نغښتے

که مې کوت يو ګل اندام وۀ پروت په سبزه دوشـالـه کښې (حميد)

**دوش خانـه** :- (دو+شْ+خا+نَـه)، [پ، اس، مـؤ، وا ، ج : دوش خـانې] هغـه ځـاے چې د پخولونه اول ځرمنې پکښې کښېښولے شي۔

**دوشنبه** :- (دو+ش+َمْ+بَهَ) ، [فا ، اس ، مؤ] د ګُل يا د پير ورځ، د دربم ورځ۔

**دوشـېرلے** :- (دو+شـې+رْ+لَے) [اَف : پ (قـاموس) اس، مـذ ، وا ، ج : دوشـېرلي ، دوشېرليان (مؤ، وا : دوشېرله ،ج : دوشېرلې] دوه کلن چېلے ، دوه غاښے شېرلے۔

**دوښا** :- (دو+شايا+خا) ، [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ] زوښه، دانګور يا داسې بل

ځیز شیره ـ

**دوښاخه** :ـ (دو+شا+یا خا+خَه)، [پ، اِس، مؤ ،وا ،ج : دوښاخې] دوه غاشے، هغه لرګے چې دوه غاښونه لري ،دوغاښ، ډیګور ـ

**دوښاخې** :ـ (دو+شا+یاخا+خې) [اَف:پ(قاموس) ،و-دولنګ بنیادم ـ

**دوغ** :ـ (دو+غْ)، [فا ، اِس ، مذ] (۱) شُوملې، شېښبے، تروې ـ

د شــودوپیـوعوض ئې وي په زړهٔ کښې
چــې سـفـله وچاته ورکا چېرې دوغ (خوشحال)

(۲) ب،خ) داغ، تړکه ـ

**دوغښ** :ـ (دو+غَ+شْ+یاخْ) [پ، فا : دوزخ، اِس ،مذ ،وا ،ج : دوغښُونه] و-دوزخ

**دوغښي** :ـ (دو+غَ+شِيْ یا خِيْ) [پ : اِس] و- دوزخي ـ

**دوغله** :ـ (دو+غْ+لَه)، [پ، اُر : دوغلا ، ص] (۱) منافق (۲) کم عقل، کمینه ـ

زهٔ یم حېران زهٔ د انسان دې دورنګۍ ته
یو الله بــه ښـهٔ پــه دې دوغلـه پوهېږي (صادق الله )

(۳) نیمچه، دوه نسلے، ارګجه ـ

**دوغلـه تـوب** :ـ (دوغلـه +تـو+بْ) [پ ، اِس ، مـذ] (۱) کمینـه تـوب (۲) ارګجـه توب، ارګجه والے ـ

**دوک** :ـ (دْ+وَ+کْ)، [پ، اِس، ص، مـذ ، (مـؤ، وا : دوکـه ،ج : دوکـې] دوه کلـن ځناور، په غاښو دوه، دوکالیز ـ

**دُوک** :ـ (دُوْ+کْ) [پ ، اِس ، مذ] (۱) دق، نرے رنځ (۲) تکلیف، درد ـ

له یوه دُوکه و بل ته
پورته خېژي مراتب (حمید)

(۳) بغض، حسد ، کینه (۴) د جولا تکله ـ

**ــــ په زړهٔ کښې ګرځول** :ـ اِص ،غم په زړهٔ تېرول، خپل غم بل ته نهٔ ښکاره کول

**ــــ رسول** :ـ اِص، تکلیف رسول،غم درد ورکول ـ

**ــــ زغمل** :ـ اِص ،غم تکلیف په ځان پېځل ـ

لکه ګل څو خپه کېږي بوئې ئې لاپسې زیاتېږي
هسې رنګ لاغلبــه شي په زغمل د مینې دُوک
(حمید)

**ــــ سره درلودل** :ـ اِص، یو بل سره کینه او بغض ساتل ـ

**ــــ ورکول** :ـ اِص ،غمونه دردُونه وررسول، خفه کول ـ

**ــــ ورلوېدل** :ـ اِص ،په نرې رنځ بیمارېدل ـ

**په دُوک** :ـ اِص ،په تکلیف ـ

له دې هسې احــمقۍ دې پــناه اوشه
چې دې نور په مال خوښي کا ته په دُوک (حمید)

**دوکال** :ـ (دُوْ+کا+ل) [اَف:پ (قاموس) اِس ، مذ] دسوکړې ،قحط، سره ـ

**دوکــالیز** :ـ (دو+کــا+لِيْ+زْ) [پ ،اِس، ص، مــذ ، (مــؤ ،وا :دوکــالیزه ،ج : دوکالیزې] ـ و - دُوک ـ

**دُوکان** :ـ (دُوْ+کا+نْ)، [پ، اِس، مذ ، وا ، ج : دوکانُونه] و - دُکان ـ

جــوهــري شي دُرولعل کانـــدې برخېره
چې مې کښېني د دوه سترګو په دوکان کښې (رحمٰن)

**دوکانچه** :ـ (دُوْ+کا+نْ+چَه) [پ (ادرک)اِس ،مؤ ،وا ، ج : دوکانچې] د دوکان یا ور په مخکښې جوړه ډبه، د نمانځهٔ چبوتره، دُوکانچه ـ

**دُوکانـدار** :ـ (دُوْ+کـا+نْ+دا+رْ) ،[پ، اِس، ص، مـذ ، وا ، ج : دوکانـدران (مـؤ ،وا : دُوکانداره، ج : دُوکاندارې] و - دُکاندار ـ

**دُکانداري** :ـ (دُوْ+کا+نْ+دا+رِيْ) ،[پ ، اِس ، مؤ] و - دُکانداري ـ

**دُوکتې** :ـ (دُوْ+ک+تِيْ) ،[اَف : پ (قاموس) اِس ، مؤ] د وریږو مېده کول ـ

**دوکده** :ـ (دو+کَ+دَه) ، [پ ، اِس معرفه] د بُونیر په علاقه کښې د پیر بابا سره نږدې یو کلے ـ

**دُوکړه** :ـ (دُوْ+کْ+ړَه)، [اِس، مؤ، وا ، ج :ـ، دُوکړې] و- دُوپړه ـ

سارېندې دوکړې ئې ماتې کړې د دوي
تــول ئــې کړل د شـریعت پـه لار روان (عبدالعظیم)

**ــــ وهل** :ـ اِص، دُوپړه وهل ـ

**دُوکـړه مار** :ـ (دُوْ+ک+ړَه+مـا+رْ)[پ ، اِس ، ص ، مـذ (مؤ ، وا : دُوکـړه مـاره ،ج : دُوکړه مارې] و- دُوپړه مار ـ

**دُوکړې** :ـ (دُوْ+ک+ړ+ی)، [پ ، اِس ، مؤ] و- دُوپړه ـ

**دُوکــول** :ـ (دُوْ+ک+و+لْ)، [اَف :پ (قـاموس) مــص مــت] (۱) توکــل کــول (۲) دُوک کول ، خفه کول ـ

**دوکه** :ـ (دو+کَه)، [پ، ه : دهوکا ، اِس، مؤ، وا ، ج : دوکې] ټګي، فرېب، چل

**دوکه خوړل**:ـ اِص، دوکه کېدل، تېر ایستلے کېدل، په چل کښې راتلل ـ

**ــــ کول** :ـ اِص، دوکه ورکول، ټګل، تېرباسل، تېر ایستل ـ

په پړاو کښې چې مې شپه وه ماوې داګني منزل دے
خــو بــه ځــنګه دې دوکــه کړم تګ ته نهٔ شم سمبدلے (پرېشان خټک)

**ــــ کېدل** :ـ اِص ،و - دوکه خوړل ـ

**ــــ ورکول** :ـ اِص، و- دوکه کول ـ

**دوکه باز** :ـ (دو+کَه+با+زْ) ، [پ، اِس ، ص ، مـذ ، وا ،ج : دوکـه بـازان (مـؤ، وا : دوکه بازه ،ج : دوکه بازې] دوکه مار، ټګ، چلولي ـ

**دوکه بازي**:ـ (دو+کَه+با+زِيْ) [پ ، اِس ، مؤ] دوکه ماري، ټګي، فرېب ـ

**ــــ کول** :ـ اِص ،دوکه ماري کول، ټګي کول، فرېب کول ـ

**ــــ کېدل** :ـ اِص، دوکه ماري کېدل، ټګي کېدل، فرېب کېدل ـ

**دوکه مار** :ـ (دو+کَه+ما+رْ) ،[پ ، اِس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : دوکـه مـاران (مـؤ، وا : دوکه ماره ، ج : دوکه مارې] و- دوکه باز ـ

**دوکه ماري** :ـ (دو+کَه+ما+رِيْ)،[ پ ، اِس ، مؤ] و - دوکه بازي ـ

**ــــ کول** :ـ اِص، و- دوکه بازي ـ

**ــــ کېدل** :ـ اِص، و- دوکه بازي کېدل ـ

**دُوکي** :ـ (دُوْ+کِيْ) [پ ، اِس ، مؤ] د تـاش پـه پـاڼو کښـې د دوېم نمبـر پاڼـه، دوه خالیزه پاڼه ـ

**دُوکے** :ـ (دُوْ+کَے) [اَف : پ (قاموس) اِس ، تصغیر ، مذ] د دُوک اسم تصغیر ـ

**دُوکېــدل** :ـ (دُوْ+کــې+د+لْ)، [اَف : پ (قـاموس) مــص لا] خفــه کېــدل، دُوک رسېدل ، دردېدل ـ

**دُوګ** :ـ (دُوْ+ګْ)، [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ] (۱) غصه ، قهر، کاوړ ـ

**ــــ کول** :ـ اِص، (۱) لُوګول (۲) غصه کول، قهرېدل، کاوړ کول ـ

**ــــ کېدل** :ـ اِص ،(۱) لوګېدل (۲) غصه کېدل، کاوړ کېدل ـ

**دُوګازه** :ـ (دُوْ+ګا+زَه)، [پ، اِس، مؤ، وا ، ج : دُوګازې] د مرزانو جـال، د بټېرانـو د نیولو جال ـ

**ــــ کېدل** :ـ اِص، (۱) په جال کښې ګېرېدل (۲) وهلے کېدل ـ

**ــــ لګول** :ـ اِص، د مرزانو نیولو د پاره جال لګول، دُګازه لګول ـ

**ــــ لګول** :ـ اِص ،و- دُوګازه لګول ـ

**په دوګازه کښې ګېرېدل** :ـ اِص، مرزان په جال کښې راګېرېدل ـ

**دوګانه** :ـ (دو+ګا+نَه)، [فا ، اِس ، مؤ] دوه رکعته نمونځ ـ

**ــــ کول** :ـ اِص، دوه رکعته نمونځ کول ـ

**ــــ کېدل** :ـ اِص، دوه رکعته نمونځ کېدل ـ

**دُوګانه** :ـ (دُوْ+ګا+نَه)، [اَف : پ (قاموس) اِس ،مؤ ،وا ،ج : دُوګانې] د انګور رېشه داره زېلۍ ـ

**دُوګړ** :ـ (دُوْ+ګَ+ړْ)، [اَف : پ (قاموس) اِس ، مذ) لړ شان، پُوتے قدر، لکه :دُوګړ

اورۀ په کور کښې نۀ لرم۔

**دُوګ غړن** :۔ (دُوْ+ګ+غ+ړ+نْ)، [اَف : (قاموس)، ص، مذ (مؤ، وا : دوګ غړنه ،ج : دُوګ غړنې] لُوګې وهلې، خيرن خچن، دُوګن۔

**دُوګلې** :۔ (دُوْ+ګ+لې) ، [پ (ب،خ ص] اريان دريان، حېران، اَق دق ۔

**ـــ کول** :۔ اَريانول، حېرانول، اَق دق کول

**ـــ کېدل** :۔ اص، اَريانېدل، حېرانېدل، اَق دق کېدل۔

**دُوګن** :۔ (دُوْ+ګ+َنْ)، [اَف :پ (قاموس) ص ، مذ (مؤ، وا : دُوګنه ،ج : دوګنې] و - دوګ غړن۔

**دُوګول** :۔ (دُوْ+ګ+و+لْ) [اَف ،پ (قاموس) مص مت] (۱) څوک ورو ورو په خبرو کول، دچانه په مزه مزه خبرې راويستل۔(۲) اور لُوګول۔

**دوګولې** :۔ (دُوْ+ګ+و+لې) ، [اَف :پ (قاموس) مف، مذ، وا، ج : ، دُوګولي ،مؤ : دوګولې] (۱) د چانه ورو ورو خبرې راايستلې ،څوک په مزه مزه خبرو ته تيار کړے۔(۲) اور لُوګولے شوے۔

**دُوګونه** :۔ (دُوْ+ګ+و+نَه)، [اَف :پ (قاموس) حمص] خبره را ايستنه، څوک په مزه مزه خبروته تياروُنه (۲) اورلګونه۔

**دُوګوُونکے** :۔ (دُوْ+ګ+وُوْ+نْ+کے)، [اَف :پ (قاموس) فاع، مذ، وا، ج : دوګوُونکي، مؤ : دوګوُونکې] (۱) د چانه ورو ورو خبرې را ايستونکے، څوک په مزه مزه خبرو ته تيارووُنکے۔(۲) اورلګووُنکے۔

**دُوګې** :۔ (دو+ګ+ی)، [اَف :پ (قاموس) اس ، مؤ] د ببلېو يا شپشتو يوه لوبه

**دُوګے** :۔ (دُوْ+ګے)، [اَف :پ (قاموس) اس ، مذ]، لُوګے۔

**دُوګېدل** :۔ (دُوْ+ګې+د+لْ)، [اَف :پ (قاموس) مص لا] (۱) د چا نه ورو ورو خبرې را ايستلے کېدل، د چاپه مزه مزه خبرو ته تيارېدل۔ (۲) د اورلوګېدل۔

**دُوګېدلے** :۔ (دُوْ+ګې+د+لے) [اَف :پ (قاموس) ، مف ، مذ ، وا ، ج : دوګېدلي ، مؤ : دوګېدلې] (۱) څوک په مزه مزه خبرو ته تيار کړے شوے۔(۲) اور لُګېدلے

**دُوګېدنګ** :۔ (دُوْ+ګې+دَ+نْ+ګْ)، [اَف :پ (قاموس) حمص] (۱) دُوګېدنه، دوګېدۀ، د چانه ور سرو خبرې راايستلے کېدنه۔(۲) د اور لُوګېدنه۔

**دُوګېدنه** :۔ (دُوْ+ګې+د+نَه)، [اَف :پ (قاموس) حمص] و - دوګېدنګ۔

**دُوګېدوُنکے** :۔ (دُوْ+ګې+دُوْ+نْ+کے) ، [اَف :پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج : دوګېدوُنکي مؤ : دوګېدونکې] (۱) په مزه مزه خبروته تيارېدوُنکے۔ (۲) اور لوګېدُونکے۔

**دُوګېدۀ** :۔ (دُوْ+ګې+ده)، [اَف :پ (قاموس) حمص] و - دوګېدنګ۔

**دُول** :۔ (دُوْ+لْ)، [پ (سو) اس ، مذ] د تمبې د شا ارم۔

**دُولاغې** :۔ (دُوْ+لا+غې) [اَف :پ (قاموس) اس ، مؤ] د زناناؤ يو خاص قسم پرتُوګ

**ـــ کول** :۔ اص ،د زناناؤ يو مخصوص پرتوګ اغوستل۔

**دولت** :۔ (دَ+و+لَ+تْ)، [ع ،اس ، مذ ، وا ، ج :دولتُونه] (۱) مال، زر، نغدي۔

د دُنيا پـه دولـت نـاز مـه کـړه رحمٰـنـه
دا يـو مـوئي دے پـه نظـر د موشـګاف

(۲) حکومت۔(۳) د پښتوژبې يو پخوانے شاعر دولت لواڼے۔

دا ځواب رحمٰن هغه کا چې دولت دے
کـه دلبـر د ديـدن مئـې پيـالې راکـه

**ـــ اخستل** :۔ اص، مال اخستل، پيسې ترلاسه کول۔

**ـــ اَلوزول**:۔ اص، پيسې خرڅ کول، فضول خرڅي کول ،بې ځايه دولت لګول۔

**ـــ بائلل** :۔ اص، مال دلاسه وتل، په جوارۍ کښې مال بائلل۔

**ـــ بُودول**:۔ اص، دولت حاصلول، د چانه په ټګۍ ټورۍ پيسې اخستل۔

**ـــ بيامُوندل** :۔ اص، مال لاس ته راتلل۔

**ـــ جمع کول** :۔ اص، مال جمع کول، دولت خوندي کول، پيسې نۀ لګول، دولت غونډول

**ـــ خرڅ کول**:۔ اص، پيسې خرڅ کول، دولت لګول، په پيسو کار ويستل۔

**ـــ خوندي کول** :۔ اص، و - دولت جمع کول۔

**ـــ غونډول** :۔ اص، و - دولت جمع کول۔

**ـــ ګټل** :۔ اص، مال ګټل، مال لاس ته راتلل۔

**ـــ لګول** :۔ اص، و - دولت خرڅ کول۔

**په دولت اخستل**:۔ اص، په پيسو په زور څۀ څيز تر لاسه کول، په بيعه اخستل۔

**په دولت پسې کېدل** :۔ اص، تش د مال فکر کول، په پيسو پسې زړۀ خوړل۔

**د دولت په نشه کښې ګرځېدل** :۔ اص ،د ډېر مال په وجه کبر او لوئي کول۔

**دولتمن** :۔ (دَو+لَ+تْ+م+َنْ) ، [پ ،فا : دولتمند ، اس ص، مذ ، (مؤ، وا : دولتمنه، ج : دولتمنې] دولتمند ، مالدار، شتمن ،د پيسو خاوند ، موړ۔

**دولتمند** :۔ (دَو+لَ+تْ+م+نْ+دْ)، [فا، اس ، ص ، مذ ، وا ،ج : دولتمندان (مؤ ،وا : دولتمنده، ج : دولتمندې] و- دولتمن۔

خدايـه ګـنج د قناعـت ورحمٰـن ورکـړې
چـې بـې ملکـه بـې حشـمته دولتمنـد وي

**دولتمندي** :۔ (دَو+لَ+تْ+م+َنْ+دِي)، [فا ، اس ، مؤ] دولتمني، مالداري، شتمني۔

**دولتمني** :۔ (دَو+لَ+تْ+م+نِيْ) ، [پ ، اس ، مؤ ] و- دولتمندي۔

**دولتې** :۔ (دُوْ+ل+ت+ئي) ،[پ ، اس ، مؤ] د ځناور برغې لتې، غبرګې لتې۔

**ـــ وهل** :۔ اص، د ځناور برغې لتې وهل۔

**دُول کوټ** :۔ (دُوْ+لْ+کو+ټْ) ،[اَف :پ (قاموس) اس مذ، وا، ج : دُول کوټُونه] د غوښې بازار، د قصابۍ دُوکانُونه۔

**دُولکې** :۔ (دُوْ+لْ+کِيْ)،[پ، ه : دُلکې، اس ، مو] د اَس د زغلېدلو يو چال چې په يو ځل درې پښې اُچتوي۔

**ـــ وهل** :۔ اص ،د اَس د دُولکۍ په چال زغلېدل۔

**دولـه** :۔ (دو+لَـه)، [اَف :پ (قاموس) اس ، مؤ، وا ، ج : دولې] (۱) د سپي يـا د ګيدړ اوږد اُونکے يا چغه۔(۲) کوزه، دولۍ۔

**دولۍ** :۔ (دو+ل+ی)، [اَف :پ (قاموس) اس ، مؤ] و-دوله۔

**دُومالي** :۔ (دو+ما+ل+ی) [پ (سو) اس ، مؤ] د چوکټ سروته او وېخ کښې بهرته وتلي لرګي۔

**دُومبره** :۔ (دُوْ+مْ+بْ+رَه)، [اَف :پ (قاموس) ص]زيات پرسېدلے۔

**دومبيله**:۔ (دُوْ+مْ+بې+لَه) [پ ،اس ص] (۱) دوه نليز ټوپک۔(۲) دوه چتيز ۔

**دُومبوره** :۔ (دُوْ+مْ+بُـو+رَه)، [اَف :پ (قاموس) اس، مؤ ،وا ،ج : دُومبورې] دوتاره، تمبوره، طنبوره۔

**دُومرکے** :۔ (دُوْ+مْ+ر+کے) ،[اَف :پ (قاموس) ص] لږ، دُومره قدر، کم۔

**دُومره** :۔ (دُوْ+مْ+رَه)، [پ ، ص] هُومره، دا قدر۔

مـانـې څـۀ لـه جـوړوې صبا دې کـوچ دے
دومـره بـس دے چـې پـه تـا څخېـږي نـه

**دومنده**:۔ (دُ+و+مَ+نْ+دَه) [اَف :پ (قاموس) اس ، مؤ] شاروے، بوده۔

**دُومه** :۔ (دُوْ+مَه)، [پ (صوابي) اس، مؤ، وا ،ج : دُوې] (۱) و - دُوان۔(۲) هغه اور چې وړې پرې ورتَوي۔

**ـــ اچول** :۔ اص، وړې ورتَول، ډاډه اچول، تراړه کول۔

**ـــ ګرمَول** :۔ اص، د څوکسانو په يو ځاے ډېر ښۀ ګپ شپ لګول۔

**دُومې ته کښېناستل** :۔ اص ،نرې اورته کښېناستل، وړې ورتَولو دپاره اور نه

ګېر چاپېره کېښناستل ـ

**دُومې** :ـ (دُوْ+م+ې) ،[اِپ ، اِس ، مؤ] توده سړه ،سارۀ وهل، انفلوئنزا ـ

پـه فراق کښېږ زما اوښکې هسې تلۀ کا

لکه څوک چې اخته شوے په دوېې وي (خوشحال)

**دُومې** :ـ (دُو+مَې) ،[اَف :پ (قاموس) اس ، مذ] اوچت ځاے، اُوچتوالے ـ

**پر دُومې ختل** :ـاِص ،په اوچت ځاے ختل ـ

**دُومې** :ـ (دُوْ+مَې) ،[اِپ (شن) اِس ، مذ] نزلـه، يـو مرض ـ متـل : غوښـه د هـر چا خوښه ده خو د پيشو وريسې دُومې دے ـ

**دونټې** :ـ (دُوْ+نْ+ټ+ې) ،[اَف :پ (قـاموس) اِس ، مـؤ] دملنګـانو د کېښناسـتو تکيه، دونهې ـ

**دُوند**:ـ (دُوْ+نْ+دْ) [اِپ ،ه : دُهند ،اِس، مذ ،وا ، ج : دُوندونه] تياره، خړه ـ

د مـخ ورغ کـه ئـې خـط شـپه کـړه عليخانـه

پـه ناترســو تيـارۀ بنـۀ ده اودُونـد لابنـۀ

**دوندي** :ـ (دو+نْ+دِيْ)، [اَف :پ (قاموس) ص] دونه ـ

**دُوڼ** :ـ (دُوْ+ڼْ)، [اَف :پ (قاموس) اِس ، مذ] ګرد ، دُوړې ـ

**دُوڼه** :ـ (دُوْ+ڼَه) ، [اِپ ، ص ، مؤ، وا ، ج : ددوڼې/دوړه، ټوقه، مسخره ـ

**دوڼـه مـار** :ـ (دوڼـه+ما+رْ) ، [اِپ ،اِس ، ص ، مـذ ، (مـؤ وا : دوڼـه مـاره ،ج : دوڼـه ماري] ټوقي، دوړه مار ـ

**دوڼـه مـاري** :ـ (دوڼـه+ما+رِيْ) اِپ ، اِس ، مـؤ] دوړه مـاري، ټوقمـاري، مسـخره توب ـ

**دوڼې** :ـ (دُوْ+ڼې) ، [اِپ (صوابي) اِس ، مؤ] و - دُوان ـ

**دُوڼې** :ـ (دُوْ+ڼې)، [اِپ ، اِس ، مؤ] د جامو وينځلو خاورين لوښے ـ

**دوڼې** :ـ (دُوْ+ڼې) ، [اَف :پ (قاموس) اِس ، مؤ] څادرې، داوڼ،بورقه، پړُونے ـ

**دُوڼې** :ـ (دو+ڼې) ،[اِپ ، اِس ، مـؤ] (۱) د شـودو يشولولوښـے ـ(۲) د زنانـاؤ يـو کالے ـ

**دُونکاچه** :ـ (دُوْ+نْ+کا+چَه) ، [اِپ ،اِس، مؤ ،ج : دُونکاچې] و - دُوکانچه ـ

**دُونکېدل** :ـ (دُوْ+نْ+کې+د+لْ)، [اِپ (شن) مص لا] د سختې ګرمۍ نه يشېدل، دګرمۍ نه څُټکېدل ـ

**دونګا** :ـ (دو+نْ+ګا)، [اِپ (وز) اِس ، مذ] دانګے، بټ ـ

**دونګـول** :ـ (دو+نْ+ګَ+و+لْ)[اِپ (مـر) مـص مـت] زغلول،پـه منـډه کـول، پـه منـډه اخستل

**دونګولے** :ـ (دو+نْ+ګَ+و+لَے)، [اِپ (مـر) مـف ،مـذ ،وا ، ج : دونګـولي، مـؤ: دونګولې] زغلولے شوے، په منډه اخستلے ـ

**دونګونه**:ـ (دو+نْ+ګَ+و+نَه)، [اِپ (مر) حمص] په منډه اخستنه، زغلونه ـ

**دُونګووُنکے** :ـ (دو+نْ+ګَ+وُوْ+نْ+کَے)، [اِپ ،(مر) فـاع ،مذ ،وا ،ج : دونګووُنکي ، مؤ : دونګووُنکې] زغلووُنکے، په منډه کووُنکے ـ

**دُونـوي** :ـ (دُوْ+نَ+وِيْ)، [اِپ ، ص ] اَتـۀ کـم سـل، دوه نـوي، دوه اتيـالس، دوه د پاسه څلورنيم شلې ـ

**دونوي يم** :ـ (دونوي+يَ+مْ) [اِپ ، ص] دوه نوي يم، دوه اتيالسم، پـه اتـۀ کم سلم نمبر

**دونه** :ـ (دو+نَه)، [اِپ ، ص] دومره، دا قدر، دوني ـ

**دُونه** :ـ (دُوْ+نَه)، [اِپ ، اِس ، مؤ]هغه اور چې د خوشحالۍ په توګه بل شي ـ

**دُونهـه** :ـ (دُوْ+نْ+هَـه)، [اِپ، اِس ، مـؤ ، وا ، ج : دونهـې] دوهـه ،دُومـه، د ملنګـانو بل کړے نرے اور چې ورو ورو لُوګېږي، دو هې ـ

د کـاملــې عـقـيـدې لـه بـرکته

ددونهې په غاړه ناست شاه جهان يم (رحمٰن)

**دونهې تـه کېښناسـتل** :ـاِص (۱) نـرې اورتـه کېښناسـتل(۲) ملنـګ کېـدل، دنيـا پرېښول

يا بـه کېښنم و دونهې ته

يا بـــه ســورې د همائی (رحمٰن)

**دُونهې** :ـ (دُوْ+نْ+ه+ې) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ] و -دُونټې ـ

**دُونې** :ـ (دُوْ+نَ+ې) ،[اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ] دوده ـ

**دُونـي** :ـ (دُوْ+نـيْ) ،[اَف :پ (قـاموس) اَس ،مـذ ،وا ، ج : دُنيـان ،مـؤ : دونـې] کوني، ګانډو ـ

**دُوني** :ـ (دُوْ+نِيْ) [اَف :پ (قاموس) ، ص] و -دونه ـ

**دُوني مور** :ـ (د+و+نِي+مو+رْ)، [اَف :پ (قاموس) اِس ، مؤ] يـوه حشـره يـا چينجـے چې په ونه کښې وي ـ

**دَووس** :ـ (دَ+وُوْ+سْ) [اِپ ،ع : ديوث اِس، ص ،مذ ، وا : دووُسان (مؤ،وا: دووُسه ،ج : دووسې] دله، بې غېرته، ديوس، کُوني ـ

غريب خداے کړې دووُس چا کړې دامتل دے

د غـېرت څــرنګ مشال په دېکښې بل دے (صادق الله)

**دووسـول** :ـ (دَ+وُوْ+سَ+و+لْ) اِپ ، مـص مـت] بـې غېرتـه کـول، بـې عزتـه کـول، شرمَول

**دووُسـونه** :ـ (دَ+وُوْ+سَ+و+نَـه)[اِپ ، حمـص] بـې عزتـه کونـه،بې غېرتـه کونـه، شرمونه-

**دووُسـووُنکے** :ـ (دَ+وُوْ+سَ+وُوُ+نْ+کَے) ،[اِپ ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج : دووسـوُنکي ، مؤ : دووسونکې] بې عزته کووُنکے، بې غېرته کوونُکے، شرموونُکے ـ

**دُووسي** :ـ (دَ+وُوْ+سيْ) ، [اِپ ، اِس ، مؤ] بې غېرتي، بې شرمي، کوني توب ـ

**ــــ کول** :ـاِص، بې غېرتي کول، بې شرمي کول ـ

**دووُسېدل** :ـ (دَ+وُوْ+سې+د+لْ) ،[اِپ ، مص لا] بې عزته کېدل، بې غېرتـه کېـدل ، شرمېدل ـ

**دووُسېدنه** :ـ (دَ+وُوْ+سې+د+نَه) ،[اِپ ، حمص] دووُسېدۀ، بې عزتـه کېدنـه، بې غېرته جوړېدنه، شرمېدنه ـ

**دووســــېدُونکے** :ـ (دَ+وُوْ+ســــې+دُوْ+نْ+کَے)[اِپ، مـــف ، مـــذ ، وا ، ج : دوُوُسېدُونکي،مـؤ : دووسېدُونکې] بې عزتـه کېـدونُکے، بـې غېرتـه جوړېدونُکے، شرمېدوُنکے ـ

**دُووُسېدۀ** :ـ (دَ+وُوْ+سې+دهٔ)، [اِپ ، حمص] و - دووُسېدنه ـ

**دوولس** :ـ (دْ+وو+لَ+سْ)، [اِپ ، اِس ، عدد] دوه د پاسه لس ،دوه او لس ـ

**دوولس ګون** :ـ (دوولس+ګُو+نْ+)، [اِپ ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا : دوولس ګُونه ،ج : دوولس ګونې] دوولس چنده ،دوولس واره-

**دوولسم** :ـ (دْ+وو+ل+س+مْ) ، [اِپ ، اِس ، عـدد ، مذ ، (مؤ ، وا : دوولسـمه ،ج : دوولسـمې] (۱) پـه دوولسـم نمبـر پـه يوولسـم پسـې ـ(۲) د ربيـع الاول د مياشتې دوولسم تاريخ چې د حضور صلى الله عليـه وسلم د ميلاد ورځ ده ـ (۳) دوولسم جماعت دوولسم صنف ـ

**دوولسمه** :ـ (دْ+وو+ل+س+مَه)، [اِپ ، اِس ، مؤ] و - دوولسم(۲) ـ

**دوويشت** :ـ (دْ+وَ+وِيْ+شْ+تْ) ، [اِپ ، اِس ، عدد] دوه د پاسه شل، دوه او شل

د هجرت زرد دوويشت سن وو

چــې زۀ راغــلم پــه جهان (خوشحال)

**دوويشـتم** :ـ (دْ+وَ+وِيْ+شْ+تَ+مْ)، [اِپ ، اِس ، عـدد (مؤ، وا : دوويشـتمه،ج : دوويشتمې] دوه او شلم نمبر ـ

**دوه** :ـ (دْ+وَه) ، [اِپ ، اِس ، عدد] په شمار کښې په يو پسې ،يو او يو چې يو ځاے شي نو دوه ورته وائي ـ

پـه غـزل کښـې خـو دوه بېتـه انتخـاب وي

د رحمٰـــن تمـــام غـــزل دے انتخـــاب

**ـــ برغه** :ـ اص ،دوه ځله، دوه غبرګه ـ

**ـــ په درېږ راتلل** :ـ اص، زيات راتلل، په ګڼه راتلل ـ

دا کوچنی زړهٔ مې او ددې مېلمستيا
يـو غـم خو نهٔ وي دوه په درېږ راشي (صادق الله اورکزی)

**ـــ درېږ** :ـ اص، دوه او درې، يو څو کسه ـ

که ديا ره نه جداوي دوه درېږ لوښتي
وعاشق وته ښکارېږي دوه درېږ ميله (خوشحال)

**ـــ ډېرے ټکول** :ـ اص، دوه کاڼي ټکول، د منګلو په علاقه کښې کـه څوک پـه جرګه کښې دوه کاڼي سره اوټکوي نو دا بدشګون شمارلے شي ـ

**ـــ ګوتے ډولکے** :ـ اص، منافق، ټګ، بې اعتباره ـ

**ـــ لاس دوه پښې پاتې کېدل** :ـ اص، تـش لاس پـاتې کېـدل، پـه لاس کښې هـېڅ نۀپاتې کېدل ،ټول مال دولت له لاسه وتل ،په ډاګه پاتې کېدل ـ

**ـــ په دؤوبېرو پښې ايښول**:ـ اص ،(۱) په يو وخت دوه کارونه شروع کول.(۲) د يو کس سره وفادار نۀ پاتې کېدل ،بې پتي کول ـ

**په دوؤ کښې ګېرېدل** :ـ اص، اريانېدل، اَق دق کېدل ـ

**د دوؤ څخه يو کول** :ـ (اَف) اص، يوه خبره فېصله کـول، د خبرې جوړلولـو د پـاره ستړګې پرې ورېټول ـ

**يو دوه خطا کېدل** :ـ اص ،حېرانېدل، يرې اخستل ـ

**دوه اتيا**:ـ (دوه+اَ+تْ+يا)، اِپ ، اس ، عدد] دوه د پاسه څلور شلې ـ

**دوه اتيايم** :ـ (دوه+اَ+تْ+يا+يَـ+مْ)، اِپ، اس ،عـدد، مـذ، (مؤ، وا : دوه اتـيا يمـه ،ج : دوه اتيا يمې] دوه د پاسه په اتيا نمبر ـ

**دوه انـډيزه** :ـ (دوه+اَ+نْ+ډِيْ+زَه)، اِپ ، (خـل) اس ،مـو ،وا ، ج دوه انـډيزې] هغـه اګۍ يا ها چه دوه زېړ پکښې وي، دوه بندۍ ـ

**دوه اويا** :ـ (دوه+اَ+وْ+يا) اِپ ، اس ، عـدد] دوه د پاسـه درې نـيم شـلې، دوه شـپېتهٔ لس ـ

**دوه اويـايم** :ـ (دوه+اَ+وْ+يـا+يَـ+مْ)، اِپ ، اس ، عـدد، مـذ ، (مـؤ ،وا : دوه اويايمـه ،ج : دوه اويايمې] دوه د پاسه په اويا نمبر ـ

**دوه برغيز** :ـ (دوه+بَـ+رْ+غِيْ+زْ) اِپ ، ص] جوړه بچي، دوه پـه يـو ځـل برغـوني، غبرګوني ـ

**دوه بندۍ** :ـ (دوه+بَـ+نْ+دَ+ۍ) اِپ ، اس ، مؤ] و - دوه انډيزه ـ

**دوه يې** :ـ (دْ+وَه+يـِ)، اِاَف :پ (قاموس) اس ، مذ] څاروے، بوده ـ

**دوپټی** :ـ (دُ+وَ+ه+پ+ټی) اِاَف :پ (قـاموس، اس ، مـؤ] دوبـره، دوه برغـه، دوه پسورے ـ

**دوه پټيـز** :ـ (دوه+پ+ټِيْ+زْ) ،اِپ، ص، مـذ ، (مـؤ، وا : دوه پټيـزه ج : دوه پټيـزې] چې دوه پټه لري ـ

**دوه پړيـق** :ـ (دوه+پَ+ړِيْ+قْ) اِپ، ص، مـذ ، (مـؤ، وا :دوه پړيقـه،ج : دوه پړيقې] دوه ژبے، دوه ژنګے ، دوه ډبيـز ، منـافق، بـې اعتبـاره، دوه غاړيز ـ

**دوه پسورے** :ـ (دوه+پْ+سو+رے)، اِاَف :پ (قـاموس) اس ،مـذ ،مـؤ : دوه پسورې] و - دوپټی ـ

**دوه پښيزه**:ـ (دوه+پْ+شِـيْ يـا خِيْ+زَه) اِپ، ص، مؤ، وا ،ج : دوه پښـيزې] دوه پښې

**دوه پنځـوس** :ـ (دوه+پَ+نْ+ځْ+زو+سْ) ، اِپ ، اس ، عـدد] دوه د پاسـه دوه نيم شلې

**دوه پنځوسـم** :ـ (دوه+پَ+نْ+ځْ+زو+سَ+مْ)، اِپ، اس، عـدد ،مـذ ، (مـؤ ،وا : دوه پنځوسمه ج : دوه پنځوسمې] دوه د پاسه په پنځوس نمبر ـ

**دوه پُوره**:ـ (دوه+پُوْ+رَه)، اِپ، ص ،مؤ، وا ، ج : دوه پُوړے] دوه چتيز ـ

**دوه پـه دوه** :ـ (دْ+وَه+پَـه+دْ+وَه)، اِپ ، ص] پـه دوه کسـه، دوه کسـه چې يـو ځاے شي

**ـــ کېدل** :ـ اص، دوه تنه يو ځاے کېدل، دوه تنه سره مخامخ کېدل ـ

**دوه تا** :ـ (دوه+تا) ، اِپ ، ص] دوه غبرګه ،دوه تهيز ـ

**دوه توئې** :ـ (دْ+وَه+تـو+ئـې)، اِپ ، اس معرفـه] پـه وزيرستان کښې د يـو ځـاے نوم چېرته چې دوه تويُونه سره يو ځاے کېږي ـ

**دوه تهيـز** :ـ (دوه+تَ+هـِيْ+زْ) اِپ، ص، (مـؤ : دوه تهيـزه ،ج : دوه تهيزې]پـه دوه تا، دوه غبرګ ـ

**دوه جنسي** :ـ (دوه+ج+نْ+سِيْ)، اِپ ، ص] چې دوه جنسه لري ـ

**دوه ځايـه** :ـ (دوه+دْ+زا+يَـه) اِپ ، اس ، ص] (۱) دوه برخې، دوه حصّې.(۲) دوه ځايونه.(۳) په دوه ځايونو کښې استوګن.(۴) جُدا ،بېل ـ

**ـــ کول** :ـ اص، په دوو برخو وېشل، تقسيمول، برابروېشل ـ

**ـــ کېـدل**:ـ اص ، پـه دوو برخـو کښـې ويشـلے کېـدل، تقسـمېدل، برابروېشـلے کېدل ـ

**دوه چتيــز** :ـ (دوه+چ+تــِيْ+زْ) ، اِپ ، ص ،مـذ ، (مـؤ ،وا : دوه چتيــزه ،ج : دوه چتيزې]و - دوه پُوره ـ

**دوه څلوېښت** :ـ (دوه+تْ+سَ+لْ+وې+شْ يا خْ+تْ)اِپ ، اس ، عـدد]دوه د پاسـه دوه شلې

**دوه څلوېښتم** :ـ (دوه+تْ+سَ+لْ+وې+شْ يا خْ+تَـ+م) اِپ، اس، عدد ، مذ ، (مؤ ، وا : دوه څلوېښتمه ج : دوه څلوېښتمې] دوه د پاسه په څلوېښت نمبر

**دوه خاليزه** :ـ (دوه +خا+لِيْ+زَه)، اِپ ، ص] و دُوکې ـ

**دوه خلے** :ـ (دوه+خْ+لي) اِاَف : پ (قاموس) اس ، مؤ] يو قسم ګنډون ـ

**دوه خُولې** :ـ (دوه+ خُوْ+لي)، اِاَف :پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) د درمـن دوه غابنـے.(۲) چې دوه خُولې لري ـ

**دوه دُونه** :ـ (دوه +دُوْ+نَه)، اِپ ، ص] دوه دُونه، دوچند ـ

**دوه دُونه** :ـ (دوه+دُوْ+نَه)، اِپ ، ص] و - دوه دُونه ـ

**دوه دېـرش** :ـ (دوه+دې+رْ+شْ)، اِپ ، اس ، عـدد] دوه د پاسـه دېـرش، اتـه کـم څلوېښت، دولس او شل ـ

**دوه دېرشم** :ـ (دوه+دې+رْ+شَ+مْ)، اِپ ، اس ، عـدد، مـذ، (مؤ ،وا : دوه دېرشـمه ،ج : دوه دېرشمې] دوه د پاسه په دېرش نمبر ـ

**دوه ډبيز** :ـ (دوه+ډَ+بِيْ+زْ)، اِپ، ص، مذ ، (مؤ، وا : دوه ډبيزه ،ج : دوه ډبيزې] و - دوه پړيق ـ

**دوه ډوله** :ـ (دوه+ډو+لَه)، اِپ ، ص] دوه ټکړې ـ

دا زمـــا تُوره مصرۍ څـهٔ د اقبال وه
چې دوه ډوله ئې رقيب کـړله يوهٔ شرپه (عظيم)

**دوه رنګي** :ـ (دوه+رَ+نْ+ګِيْ)، اِپ ، ص] منافقت، دوه ژنګي، ټګي ـ

**دوه زړهٔ** :ـ (دوه +زْ+ړه) ، اِپ ، ص] په دوؤ کښې ګېر چې فيصله نهٔ شـي کولے ـ

**ـــ کېدل** :ـ اص ، په دوؤ کښې ګېرېدل، په فېصله کولو کښې پاتې راتلل ـ

**پـه دوه زړهٔ کښـې کېـدل** :ـ اص ،پـه ګومګـو کښـې ګېرېـدل، حيرانېدل،پـه څـهٔ فېصله کښې پاتې راتلل ـ

**دوه زړهٔ توب** :ـ (دوه+زْ+ړه+تو+بْ)، اِپ ، اس ، مذ] حېراني ـ

**دوه زړه** :ـ (دوه+زْ+ړے)، اِپ، اس، ص، مـذ، وا ،ج : دوه زړي ،مـؤ : دوه زړې] په دوؤ کښې راګېر، حېران ـ

**ـــ کېدل** :ـ اص په دوؤ کښې راګېرېدل، حېرانېدل ـ

**دوه زورے لېندے** :ـ (دوه+زو+رَے+لي+نْ+دے) اِپ ، (افر) اس ، مذ] ډبـل ټوپـک هغه دوه خولے پرزه چې کارتوس ته د راويستلو په وخت وراړم کېږي

**دوه ژبے** :ـ (دوه+ژ+بےَ) [پ، ص، مذ، مؤ :ـ، دوه ژبې] (۱) قط شوے قلم ـ

یک دهنه مشوانیے شوه کُوزه پاتې
په کاغذ باندې دوه ژبې قلم وخوت (علي خان)

**دوه ژنگے** :ـ (دوه+ژَ+نْ+گےَ) [پ، ص، مذ، وا، ج : دوه ژنگي، مؤ : دوه ژنگې] و - دوه پریق ـ

**دوه سکلے** :ـ (دوه+سْ+ک+لےَ)، [اَف :پ (قاموس) اِس، ص، مذ، مؤ :دوه سکلۍ] دوه کلن اُوبن ـ

**دوه سرے** :ـ (دوه+س+رَے)، [پ، اِس، ص] (۱) چې دوه سُرونه لري ـ (۲) لنډۍ، د مارانو یو ډېر خطرناک قسم، لوبشتۍ، لټکه ـ

**دوه سرے** :ـ (دوه + س + رَے) [پ، اِس معرفه، مذ] د اشنغر په علاقه کښې یو کلے ـ

**دوه شپېتم** :ـ (دوه+شْ+پـې+تَ+مْ)، [پ، اِس، عـدد، مـذ، (مـؤ، وا : دوه شپېتمه، ج : دوه شپېتمې] دوه د پاسه شپېتهٔ نمبر ـ

**دوه شپېتهٔ** :ـ (دوه+شْ+پې+ته) [پ، اِس، عدد] دوه د پاسه درې شلې ـ

دوه شـپـېـتهٔ کالُونـه په حـسـاب لـرم خپل عمر
توروېښتهٔ مې سپین شو لامې زړهٔ نهٔ دے هېڅ سپین (خوشحال)

**دوه شپېتهٔ لس** :ـ (دوه+شْ+پې+ت+لَ+سْ)، [پ (ب، خ) اِس عدد] و - دوه اویا

**دوه غـاړیز** :ـ (دوه+غـا+ړِيْ+زْ)، [پ، ص، مـذ، (مـؤ، وا : دوه غـاړیزه، ج : دوه غاړیزې] و - دوه پریق ـ

**دوه غبرگه** :ـ (دوه+غْ+ب+رْ+گَه) [پ، ص، مؤ، وا، ج : دوه غبرگې] دوه تهه، دوه تا ـ

**دوه غښے** :ـ (دوه+غ+ښےَ یا خَے) [پ، اِس، ص، مـذ] دوه غاښے سخے، څلور کلن سخے

**دوه گټوري** :ـ (دوه+گُ+تو+ړِيْ)، [پ (خ) اِس، مؤ] هغه دستانه چې د څرمنې نه جوړه وي د باز د ساتلو په وخت کښې په دوؤ گوتو کښې اچولے شي ـ

**دوه گرائے** :ـ (دوه+گْ+رائے)، [اَف :پ (قاموس) اِس، مذ] د فوځیانو چاخ تلل، ډبل مارچ ـ

**په دوه گرائے تلل**:ـ (اَف) اِص، د فوځیانو تېز تلل، ډبل مارچ کول ـ

**دوه گرایه** :ـ (دوه+گْ+را+یَه) [اَف :پ (قاموس)، مؤ] دوه گُونه، دوه چنده، دوه دُونه ـ

**ـــ ورکول**:ـ اِص، دوه چنده ورکول، دوه دُونه ورکول، دوه گونه ورکول ـ

**دوه گرده** :ـ (دوه+گْ+رْ+ده)، [پ، اِس، مؤ، وا، ج : دوه گردې] هغه ښځه چې په څلوېښتۍ کښې ئې اولاد مړشي ـ

**ـــ کېدل** :ـ اَف، د چاښځې په څلوېښتۍ کښې اولاد مړکېدل ـ

**دوه گورے** :ـ (دوه+گو+رے) [اَف :پ (قاموس) اِس، ص، مذ] هغه خوک چې یو ورته دوه ښکاري، کوږ سترگے ـ

**دوه گونے** :ـ (دوه+گُـو+نےَ) [پ، ص، مـذ، وا، ج : دوه گـوني، مـؤ : دوه گـونې] دوه چنده ـ

**دوه لاریځـه** :ـ (دوه+لا+رِيْ+زه)، [پ، اِس، مـؤ] (۱) دوه مخے، دوه لارې چې سره بیلېږي ـ (۲) داسې خبره چې دوه مطلبونه ترې حاصلېږي ـ (۳) هغه خبره چې حقه نهٔ وي ـ

**دوهم** :ـ (دْ+و+ه+مْ)، [پ، اِس، عدد، مذ، مؤ : دوهمه] دوېم، دُویه ـ

چې د هـر سړي خاطر پرې گرفتار وي
اول زلفې دوهم خال دریم رخسار دے (قلندر افریدے)

**دوه مخي** :ـ (دوه+م+خِيْ)، [پ، اِس، ص] منافقت ـ

**دوه مخے** :ـ (دوه+م+خےَ [پ، اِس، ص] منـافق، بې اعتباره، دوه ژنگے، دوه مخیز ـ

**ـــ کېدل** :ـ اِص، بې اعتباره کېدل، منافق جوړېدل ـ

**دوه مخیز** :ـ (دوه+م+خِيْ+زْ) [پ، اِس، ص] و - دوه مخے ـ

**دوهمـه خـور** :ـ (د+و+ه+مـه+خو+رْ) [پ، اِس معرفـه، مـؤ] ربیـع الـثـانـي، پـه اسلامي کال کښې څلورمه میاشت ـ

**دوه مریـزه** :ـ (دوه+م+رِيْ+زَه) [پ، اِس، ص، مـؤ] هغـه ښـځـه چـې دوه خاونـدان ئې کړي وي ـ

**دوه مېـره** :ـ (دوه + مـې + ره)، [اَف :پ (قـاموس) اِس، مـؤ] (۱) دوه قطـاره ـ (۲) دوه څله

**دوه مېله** :ـ (دوه+مې+لَه) [پ (اَش) اِس، ص] دوه نلیز ټوپک ـ

**دوه نامي** :ـ (دوه+نا+مِيْ) [پ، ص] دوه نامیز، چې دوه نومُونه لري ـ

**دوه نامیز** :ـ (دوه+نا+مِيْ+زْ)، [پ، ص] و - دوه نامي ـ

**دوه نلیز** :ـ (دوه+نَ+لـِيْ+زْ)، [پ، اِس، ص] (۱) دومبېله، هغـه ټوپک چې دوې نالۍ لري، دوه مېله ـ (۲) پتلون ته د سپکاوي په توگه وئېلے شي ـ

**دوه نوي** :ـ (دوه+نَ+وِيْ)، [پ، اِس، عـدد] دوه د پاسـه څلور نیم شلې، اتهٔ کم سل، دوه اتیالس ـ

**دوه نـوي یـم** :ـ (دوه+نَ+وِيْ+يَ+مْ)، [پ، اِس، عـدد، مـذ، (مـؤ، وا : دوه نـوي یمـه، ج : دوه نوي یمې] دوه د پاسه په نوي نمبر، په دوه اتیا لسم نمبر ـ

**دوه نیم** :ـ (دوه+ نيْ+ مْ)، [پ، ص] په دوؤ کښې وېشلے، دوه ټکړې ـ

خدایه زړهٔ مې په وصال د هغو خوښ کړه
دا چـې اوس ورځنې لرې دے دوه نیم (خوشحال)

**دوه والے** :ـ (دوه+وا+لے) [پ، ص] دوه توب، دوه کېدل ـ

**دوه ورگے** :ـ (دوه+و+ر+گےَ) [اَف :پ (قـاموس) اِس، مذ، وا، ج : دوه ورگي، مؤ : دوه ورگې] دوه کلن اوبن، دوسکلے ـ

**دُوهه** :ـ (دُوْ+هَه)، [پ، اِس، مؤ] و - دُونهه ـ

ستا د در پـه دوهـه پروت قلندر ښهٔ یم
بـادشـاهـي د خُـتـن څـهٔ کوم بې تا (حمید)

**دوهی** :ـ (دو+ه+ی) [پ، اِس، مؤ] و - دُونهه ـ

زړهٔ مې هسې په نو خطو ښکلیو پرېوت
لکه پـرېـوځي ودوُهی ته قلندر خوښ (حمید)

**دوه ییـز** :ـ (دْ+وَ+ه+يِ+زْ)، [اَف :پ (قـاموس)، ص] جُفت، د طـاق ضـد، برغد، جوړه

**دُوی** :ـ (دُوْ+یی) [پ، اِس] شرکت، د خدا ے پاک په یو والي کښې شریک پیدا کول

په دویی کښې به ورنهٔ شي تر توحیده
کـه پېشوا کړې مهتر خفر مهتر الیاس (رحمٰن)

**دوئي** :ـ (دو+ئي)، [پ، حرف] هغوي، دغه خلق، دا خلق ـ

انبیاء پـه کښې نُـورونـه د حق راغلهٔ
بیا په دوئې کښې دې رُسل کړهٔ سربالا (علي خان)

**دوي** :ـ (دو+يْ)، [اَف :پ (قـاموس) اِس، مذ] دسـتـور، قـانون، ائـین، رسـم رواج، دود ـ

**دُویچه** :ـ (دُوْ+يْ+چَه)، [اَف :پ (قاموس)، اِس، مؤ، وا، ج : دویچې] (۱) جووه، چو، چره، دچه ـ (۲) د کوهي یـا ډینگرۍ سره نزدې حوض گوتیے ـ

**دویز** :ـ (دَ+وِيْ+زْ)، [پ، اِس، ص، مذ] (۱) دوه ژبې، په دوؤ کښې راگېر ـ

لـه اغـیـارو سـره صلح رندان نهٔ کا
بې غېرته چارې کړې شبخه دوېزه (خوږدل)

(۲) دووس، دله، دهیز (۳) بې همته ـ

**دویزتوب** :ـ (دُ+وي+زْ+تو+بْ)، [پ ، اس ، ص ، مذ] (۱) د دُووس توب، دلت توب ،دهیز توب.(۲) بې همتي، دویزي ـ

**دویزي** :ـ (دُ+وي+زِيْ)، [پ ، اس ، مؤ] و- دویزتوب ـ

**دویستي** :ـ (دُ+وي+سْ+تيْ)، [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ] هغه زنانه چې په وډُونو کښې د ښادۍ د سندرو وئیلو دپاره رابللے شي او سندرې پر وئیلے شي ـ

**دوبم** :ـ (دُ+و+ي+مْ)[پ ، اس ، عدد ، مذ ، (مؤ ، وا :دوبمه ،ج : دوبمې]و- دوهم

که دا ستا د ښکلي مخ عاشقان ډېر دي

زهٔ پـه وارو کښـې اول يـم دوبـم نهٔ يم (رحمٰن)

**دُويه** :ـ (دُوْ+يَه)، [اَف : (قاموس) ، مؤ] و -دوهم ـ

**ده** :ـ (دَه)، [پ ، کلمه] د اسم مونث په اٰخر کښې د هو په معنا کښې راځي ـ

وار پـه وار بـه پـه خوشـحال بانـدې ورډرُومـي

هــره چــار چــې د محنــت يــا د راحــت ده

**ده** :ـ (ده) ، [پ ، کلمه ] دغه، دې سرې، دغه بنیادم ـ

**دهات** :ـ (دْ+ها+تْ)، [ه ، اس ، مذ ، وا ، ج : دهاتُونه] دات، د کانُونو يا د رنګونو نه راوتے هغه جوهر چې په اور ويلې کېږي ـ

**دهاندل**:ـ (دْ+ها+نْ+دْ+لْ) [ه ، اس ، مذ] (۱) شریکه حمله.(۲) شور زوږ ـ

**ـــ جوړول** :ـ اص ،شور زوږ کول، دهاندل کول ـ

**ـــ کول** :ـ اص، و - دهاندل جوړول ـ

**دهتوره** :ـ (دَ+هْ+تُو+رَه)، [ه ، اس ، مؤ] داتُوره، دېتوره ـ

**دهڅ** :ـ (د+ه+تْ+سْ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ] داج، جهېز ـ

**دهريت**:ـ(دَ+هْ+ر+يَ+تْ) [ع ، اس ، مذ] الحاد ،د خدا ے تعالیٰ نهٔ منل، دهريه توب

**دهريـه** :ـ (دَ+هْ+ر+يـه) ،[ع ، اس ، مـذ] مُلحـد ، بې مذهبـه، د خـدا ے تعـالیٰ د هستۍ نه منکر ـ

**دهريه توب** :ـ (دهريه+تو+بْ)، [پ ، اس ، مذ] و - دهريت ـ

**دهړه** :ـ (دَ+ه+ړه) ، [اَف :پ (قاموس)، اس، مؤ، وا ، ج : دهړې] د څرخ کانړے ـ

**دهړيز** :ـ (دَ+هْ+ړِي+زْ)، [پ ، ص ، مذ] څلور سيره وزن، څلور سيريز ـ

**دهشت** :ـ (دَ+هْ+ش+تْ)، [فا ، اس ، مذ] (۱) ويره، ډار ،خطره ـ

د ګرمۍ او د خـشکۍ لــه دهــشته

د افتاب په څېر کمان ئې په مهتاب وي (رحمٰن)

**دهشت پسند** :ـ (دهشت+پَ+س+نْ+دْ)، [فا، اس، ص، مـذ ، (مؤ ،وا : دهشت پسنده ،ج : دهشت پسندې) ]دهشت خوښوونکے، فسادي، شر پسند ـ

**دهشت ناک** :ـ (دهشت+نا+کْ) [فا، اس، ص، مذ ، (مؤ، وا : دهشت ناکه ،ج : دهشت ناکې] خوفناک، هيبت ناک، داسې چې بل ترې ويرېږي ـ

**دهقان** :ـ (د+هْ+قا+نْ)، [فا، اس، مذ، وا، ج : دهقانان (مؤ، وا : دهقانه ، ج : دهقانې] زميدار، کاشتکار،مزارع، کرونده ګر ـ

دهقان کر په لوړه زمـکه باندې نهٔ کا

سر کُوزي کوه چې ښې دې مرغزار شي (رحمٰن)

**دهقـان تـوب** :ـ (دهقـان+تو+بْ [پ ، اس ، مـذ] کرونـده ګـرے، زميـداري، دهقاني، مزارع توب ـ

**دهقاني** :ـ (د+هْ+قا+نيْ)، [پ ، اس ، مؤ] و - دهقان توب ـ

**ده کارل** :ـ (دَ+هْ+کا+ر+لْ) (اَف : پ (قاموس) مص مت] شکارل، لمسول ـ

**دهلـول** :ـ (دَ+ه+ل+و+لْ) [اَف : پ (قـاموس)مص مـت] ويرول،خـوفزده کـول، ډارول

**دهلي** :ـ (د+هْ+لِي)[ه ، اس معرفه] و - دلّي ـ

**دهلېدل** :ـ (دَ+هْ+لې+د+لْ)، [اَف : (قاموس) مص لا] ويرېدل، ډارېدل ـ

**دهمال** :ـ (د+ه+ما+لْ)، [ه ، اس ، مذ] (۱) ټوپُونه،ترپے، ګډا.(۲) د يو راګ نُوم ـ

**ـــ اچول** :ـ اص ،اتڼ اچول، ګډا کول ـ

**دهمرده** :ـ (دَ+هْ+م+رْ+دَه) [پ (ظف) ص] زړهٔ ور ، بهادر ـ

**دهمکـي** :ـ (د+ه+مْ+کـيْ)، [ه، اس ، مـؤ، وا ، ج : دهمکـۍ] دبکـه، دړکـه، تنبيـه ورکول ـ

**ـــ ورکول** :ـ اص، دبکه ورکول، ويرول، تنبيه ورکول، ډارول ـ

**دهنه** :ـ (دَ+هْ+نَه) ،[پ (ظف) اس، مؤ، وا ، ج : دهنې] وړه خوله ـ

**دهـور** :ـ (د+هـو+رْ)[اَف :پ (قـاموس) اس، مـذ ، (مـؤ، وا : دهـوره، ج : دهـورې] جولا، کپړې اودونکے، پاؤلي، پاؤلے ـ

**دهُوس** :ـ (دَ+هُو+سْ)، [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج : دهُوسان (مؤ ، وا : دهُوسه ،ج : دهُوسې] و - دوُوس ـ

**دهونه** :ـ (دُ+هو+نَه) [پ ، اس ، مؤ] دُومه، دُونهه ـ

**دهـه** :ـ (د+هـه) [پ ، اس ، مـؤ] عاشوره، حسن حُسين، د امامـانو د مياشـتې وړمبۍ لس ورځې ـ

**دهېر** :ـ (د+هې+رْ) ،[اَف :پ (قـاموس) ، اس ، مـذ] هجران، جُدائي، جلائـوب، فراق

**دهيز** :ـ (د+هي+زْ)، [اَف :پ (قاموس)، اس، مذ] و- دويز ـ

**دهيزتوب** :ـ (د+ هيْ + زْ+ تو + بْ)، [اَف :پ (قاموس) اس ، مذ] و - دويز توب

**ـــ کول** :ـ اص ،دوُوسي کول، بې غيرتي کول ـ

**دے** :ـ (دَے)، [پ ، حرف] دا سړے، دغه ـ

چې مې هسې تـربيت د ناخلف کړ

دا په دا چې دے له ما سره مصنف کا (خوشحال)

**دے** :ـ (دے)، [پ ، مذ ، مؤ : ده] شته، موجود دے ـ

**دي** :ـ (دي) [پ، اشاره قريب] دې سړي، دې ښځې ـ

**دي** :ـ (دِيْ)،[پ ، حرف] شته ،د جمع په توګه استعمالېږي ـ

پــــه ســبب د ظـالـمانو حاکمانو

ګور او اور او پيښور درې واړه يو دي (رحمان)

**ديار** :ـ (د+يا+رْ)، [ع ، اس ، مذ، وا ، ج : ديارُونه] ـ ملک

خوب له ياره سره هم د عاشق نهٔ شي

چې ئې يار په بل ديار وي څهٔ به خوب کا (رحمٰن)

**ديار** :ـ (دْ+يا+رْ)، [پ ، اس ، مذ، وا ، ج : ديارُونه] د ښېتر د وُنې يو قسم چې لرګے ئې ډېر پوخ وي او د اٰبادۍ د پاره استعمالېږي ـ

**ديارلس** :ـ (دْ+يا+رْ+لْ+سْ)، [پ ، اس ، عدد] دېرلس، درې او لس ـ

**ديارلسم** :ـ (دْ+يا+رْ+لْ+س+مْ)، [پ، اس، عدد ، مذ ، مؤ : ديارلسم] دېرلسم، درې د پاسه په لسم نمبر ـ

**ديانت** :ـ (د+يا+نَ+تْ) ، [ع ، اس ، مذ] ايمانداري، د خيانت ضد ، امانت ـ

چــې تقــوٰی ديانــت نــهٔ لــري رحمٰنــه

د دې هســې هــم نشــينو نشــين مــه شــه

**ديانت دار** :ـ (ديانت+دا+رْ)، [فاتر ، اس ،ص، مذ ، وا ، ج : ديانتداران (مؤ، وا : ديانت داره ،ج : ديانت دارې)] ،ايماندار ،چې خيانت نهٔ کوي،امنت دار-

**ديانت داري**:ـ (ديانت+دا+رِيْ) [فاتر، اس، مؤ] ايمانداري، امانت داري ـ

**ـــ کول** :ـ اص، ايمانداري کول، امانت نهٔ خيانتول ـ

**په ديانتدارۍ** :ـ اص، په ايماندارۍ، په راستۍ، په رښتيا ـ

**ديب** :ـ (دې+بْ) [اَف :پ (قاموس) اس ، مذ] ديو،عفريت ـ

**ديباچه** :ـ (دي+با+چَه)[فا، اس ،مؤ، ج : ديباچې] سرنامه، د کتـاب مقدمـه يا پيژندګلو، سريزه، پېل ـ

**ـــ ليکل** :ـ اص ،د کتاب سريزه ليکل ـ

**دبسه** :- (د+ې+بْ+سه) [اَف :پ (قاموس) اس ، مؤ] دبوسه، دُونکاچه ـ
**ديتوره** :- (دِيْ+تُوْ+رَه) [پ (ب،خ) ه : دهتورا، اس ، مؤ] و-داتُوره ـ
**دېچګـــوړے** :- (دې+چْ+ګـــوْ+ړَے)،[پ، اس، تصـــغير، مـــذ، وا ،ج : دېچګوړي] دېګوړے، ورکوټے دېګ، ديکچکے، دېچکه ـ
**دېچکـه** :- (دې+چْ+کَـه)[پ ، فـا : دېګچـه اس، مـؤ، وا ، ج : ديکچـې] ، و ـ دېچکوړے
**ديچکـه** :- (دِيْ+چْ+کَه)[پ ، ه : دهکـا ، اس ،مـؤ ،وا ،ج : ديچکـې] ديکـه، ټکره، ډغره ـ
**په ديچکو ديچکو تلل** :- اص، په ديکو ديکلو تلل، ايله په مشکله تلل ـ
**دېچکے** :- (دې+چْ+کَے)، [پ ، اس ، مذ، وا، ج : دېچکي] دېګچے ـ
**دېخل** :- (دې+خَ+لْ) [اَف : پ (قاموس) اس ، مذ] استانه، درګاه ـ
**ديـد** :- (دِيْ+دْ)[فـا ، اس ، مـذ] (۱) نظر ـ(۲) نتداره، دېـدن ديـدار ـ(۲) نشـانه، نخښه
**ـــ انحستل** :- اص ،نشانه برابرول، نخښه برابرول ـ
**ـــ تلل** :- اص ،ديد ختمېدل، نظر کمېدل، ړندېدل ـ
**ـــ ختمېدل** :- اص، و- ديد تلل ـ
**ـــ کمېدل** :- اص، نظر ختمېدل ،د سترګو نظر کمزورے کېدل ـ
**په ديد کښې** :- اص ،(ب،خ) په زور کښې، ښهٔ برابر ـ
**ديـدار** :- (دِيْ+دا+رْ)[فـا، اس، مـذ، وا، ج : ديدارُونـه] ديـد، دېـدن، ليـدل کتل، ملاقات

چې د اوسـپنو دانـه پـرې اوبـهٔ کېږي
تر و زما د هستۍ څهٔ دي په ديدار کښې (رحمٰن)

**ـــ کول** :- اص، ملاقات کول، ليدل کتل کول ـ

ديـدار نـهٔ دے چا پـه پټو سترګو کړے
چې مطلب د چا ديدار وي څهٔ به خوب کا (رحمٰن)

**ـــ کېدل** :- اص ،ملاقات کېدل، ليدل کتل کېدل ـ
**ديـدبان** :- (دِيْ+دْ+با+نْ) ، [فا ، اس ، مذ، وا، ج : ديدبانُونه] ديـدوان، د توپک زخه
**ديدباني** :- (ديد+با+نيْ)، [فا ، اس ، مؤ] ديد واني، څوکيداري ـ
**ديدکور** :- (دِيْ+د+کو+رْ)،[پ (کوهستان، اس ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا : ديدکوره ،ج :ديدکوري] شم کور، شوکور، شب کور، چشم کور ـ
**ديدن** :- (دِيْ+د+نْ) [پ،اس،مذ ،وا ،ج :ديدنُونه] ديدا ، د معشوق ملاقات

چـې ديـار پـه ديـدن سـرومال ښـندمه
خلقـو واوری زهٔ هغـه عبـدالرحمٰن يـم

**ـــ ته تلل** :- اص ،ملاقات ته تلل، د اشنا ليدوته تلل ـ
**ـــ ته راتلل** :- اص ،د اشنا ليدوته راتلل ـ
**ـــ راوړل** :- اص، ملاقات ته راتلل، اشناته مخامخ کېدل ـ
**ـــ کول** :- اص ،د معشوقې ملاقات کول، اشنا سره ليدل کتل کول ـ
**ـــ کېدل** :- اص ،ملاقات کېدل،ليدهٔ کاتهٔ کېدل ـ
**پهـــ مړېدل** :- اص ،ښهٔ ديدن کول، تر ډېره وختـه پورې د معشـوقې سره ليـدل کتل کول ـ

پـــه دېـــدن د يـــار مـــړې شـــوې
د خوشـــحال ســـترګې نغلانـــدې

**پهـــ مست** :- اص ،د معشـوقې پـه مينـه کښې ډوب،د يـار پـه ملاقـات بې کچه خوشحاله ـ

د دُنيا لـه سـودو زيـانه خبر نهٔ يم
په دېدن سره دې مست کړم بې شراب (خواجه محمد بنګش)

**دـــ وړے** :- اص، د ملاقات ارزومن، ليدوته لېواله ـ
**نيمګړےــــ** :- اص، لږ ملاقات ـ

هېڅ دمه مې په نيمګړي دېدن نهٔ شي
نتداره ديـار د مـخ پـه کمال غواړم (حافظ الپوري)

**ديدوان** :- (دِيْ+دْ+وا+نْ) ، [پ، اس، مذ، وا، ج : ديدوانُونه] و - ديدبان
**ديدواني** :- (ديد+وا+نيْ)، [پ ، اس ، مؤ] و - ديد باني ـ
**ديده** :- (دِيْ+دَه) [پ ، اس ، ص ، مؤ] (۱) سترګې ـ(۲) عقل فکر ـ متـل : نديده چې په ديده شي ړنا ورځ پرې توره شپه شي ـ (۳) خيال ،وهم ـ
**ديده ـ تېرېدل** :- اص، څهٔ خبره په وهم کښې راتلل ـ
**ديده دانسته** :- (دِيْ+دَهْ+دا+نْ+سْ+تَهَ)، [فا ، تابع فعـل] سره دليـدواو پوهېدو په قصد (کست) په اراده، قصداً، عمداً ـ

چې ديـده او دانسـته پـه ښـکلو غلېـږې
شـابس شـابس د حميـد پـه نـاداني

**ديــده ور** :- (دِيْ+دَه+و+رْ)، [فـا ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : ديـده وران (مـؤ ، وا : ديده وره ،ج : ديده ورې] سترګور، د سترګو يا د نظر خاوند ،د تېز نظر خاوند ،پوهه ـ

لکه دے دے په جهان کښې
بــل بــه نــهٔ وي ديده ور (خوشحال)

**ديــده وري** :- (دِيْ+دَه+و+رِيْ)، [فـا ، اس ، مـؤ] سـترګورتيا ، هوښـيارتيا ، دانائي، بصيرت ـ
**دېدي** :- (دې+دې) ، [پ (ګن) مو ، اس ، مؤ] مشره خور، ترلهٔ يا مېرنئۍ مور ـ
**دير** :- (دِيْ+رْ)، [پ، اس معرفه] (۱) د خېبر پختونخوا يوه ضلع ـ(۲) د دير د ضلعې صدر مقام ـ
**دېر** :- (دې+رْ) [فا ، اس ، مذ] ځنډ ، تاخير، اټالي، ايسارتيا، ناوختيا ـ
**ـــ کول** :- اص ،اټالېدل، ايسـارېدل، زيات وخت لګول، دېرلګول، ناوختـه کول ـ
**ـــ کېدل** :- اص، زيات وخت لګېدل، ناوخته کېدل، دېر لګېدل ـ
**ـــ لګول** :- اص، و- دېرکول ـ
**ـــ لګېدل** :- اص ،و- دېر کېدل ـ
**دَير** :- (دَې+رْ)، [فا ، اس ، مذ] بُت خانه، بُت کده ـ

که مسجد ګورې که دَير
واړه يـو دي نشته غېر (خوشحال)

**دېرش** :- (دې+رْ+شْ) ، [پ ، اس ، عدد]

زهٔ رحمت راغلم تر دېـرشـو کـالـو واوره
اوس دې وخت دے ساقي رائې کړه څواني ده (رحمت داوي)

**دېرشکے** :- (دې+رْ+ش+کَے)، [اَف :پ (قاموس) اس ، مذ] ، قرآن ـ
**ديرشل** :- (دِيْ+رْ+شَ+لْ) [پ (ب،خ) اس ، مذ، وا ، ج : ديرشلُونه] و - درشول ـ
**دېرشم** :- (دې+رْ+شَ+مْ+)[پ ، اس معرفه ،مذ (مؤ، وا : دېرشمه ج : دېرشمې] په ترتيب کښې لس او شلم ـ
**دېرشم** :- (دې+رْ+شَ+مْ)، [پ ، کلمه] درشم، د راتلو اجازت شته ـ
**دېرشي** :- (دې+رْ+شِيْ) ، [پ ، کلمه] درشي، درباندې راشي ـ

چې په خوا په خاطر نهٔ وي
هسې چارې په تـا دېرشي (خوشحال)

**ديرلس** :- (دْ+يَ+رْ+ل+سْ)، [پ ، اس ، عدد] و - ديارلس ـ
**ديرلسم** :- (دْ+يَ+رْ+ل+سَ+مْ)، [پ ، اس ، عدد] و - ديارلسم ـ
**ديروجے** :- (دِيْ+رو+جَے)، [پ ، اس ، ص ، مذ] په دير کښې جوړ شوے ـ
**ديره** :- (دِيْ+رَه) ، [اَ :پ (قاموس) اس، مؤ، وا ، ج : ديرې] تمبل، دف ـ

**دېره** :۔ (دې+رَه)، [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج : دېرې] حجره، چوک، د ناستې ځاے، مهمان خانه ۔

مونږ ورته چوک چې وايُو — څوک ئې حجره يادَوي

ځينې دېره يا دوي ۔ — (پُردل خټک)

**ـــ کول** :۔ اِص، ، مېشته ول، د ځان سره ساتل ۔

**ـــ کېدل** :۔ اِص ،مېشته کېدل، په ځا زيات ايسارېدل ۔

څو د عشق په غم آباد يم دېره شوے

راتـه نـهٔ ده بې ژړا نهٔ نور خندا پېښ — (حميد)

**ـــ نيول** :۔ اِص ،مېشته کېدل، دېره کېدل ۔

**دېره** :۔ (دې+رَه)، [پ ، اس معرفه ، مؤ] د ډېره اسماعيل خان مخفف، ډيره ۔

**دېرې** :۔ (دې+رې)، [پ ، اس ، مؤ] ،اټالتيا ، ايسارتيا ۔

**ـــ کول** :۔ اِص، اټالېدل، ايسارېدل، زيات وخت اخستل ۔

**ـــ کېدل** :۔ اِص ،ايسارتيا کېدل، ناوخته کېدل،زيات وخت تېرېدل ۔

**ديرې** :۔ (دي+رې)[پ (بنو) ، حرف] هلته، هورې، دُورې ۔

**دېرينه** :۔ (دې+رې+نَه) [فا ، ص] (۱) پخوانے ۔

هسې نـه چې زهٔ نن ورځ په تا شېدا يم

ستا غمونه مې په زړهٔ کښې دېرينه دي — (رحمٰن)

(۲) زوړ ، بُوډا ۔

نېکو کار سړے بهتر دے که خودسال وي

تـرسپـيـن ږيـري بـدکرداره دېـريـنـه — (رحمٰن)

**دېز دره** :۔ (دې+زْ+د+رْه) [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ] يو قسم جواري ۔

**ديـــــــــــــــز** :۔ (دي+ژْ)[پ (ب،خ) ص ، مـذ ، (مـؤ ، وا : دژه، ج : دژے) اخيـر، چـې آوار نهٔ وي

**دېس** :۔ (دې+سْ)، [ه، اس ، مذ ، وا ،ج : دېسُونه] ملک، وطن، هېواد ۔

**ـــ په دېس** :۔ اِص، ملک په ملک، کلي په کلي، په ملکُونو ۔

**دېـســـگـنـے** :۔ (دې+س+گْ+ن+ړ ے) ، [اَف : پ (قـامـوس) ص ، مـــذ] دووُس، ديُوس

**دېسي** :۔ (دې+سِي)، [ه ، ص] (۱) وطني ملکي، د خپـل ملـک۔(۲) کچـه، چې پوخ نهٔ وي، چې غوره نهٔ وي۔

**دېشه** :۔ (دې+شَه)، [اَف : پ (قاموس) اس ، مؤ] غړاسکے ، زېږه ونې۔

**دېشي** :۔ (دې+شِي)، [پ ، اس ، معرفـه ، مذ ، وا ، ج : دېشيان ،مؤ : دېشـۍ] د پښتنو يوه قبيله ۔

**دېشين** :۔ (دې+شي+نْ) [پ ، ص ، مذ ، مؤ :دېشنه] د دېشي قبيلے يو غړے ۔

**دېښنهٔ** :۔ (دې+ش+ياخْ+نه)، [پ (بن) اس] ، دُښمن ۔

**ديـغ** :۔ (دي+غْ+)، [پ ، ص ، مـذ ، مـؤ : ديغـه] خفـه، زهيـر ، غمـژن، غمجن، دلګير

**ديغت** :۔ (دي+غْ+تْ)، [پ ، اس ، مذ] خفګان، غمژني، خفه توب ۔

**دېکچکـــے** :۔ (دې+کْ+چ+کـــے)، [پ (ب،خ) ، اس تصـــغير ،مـــذ ،وا ،ج : دېکچکي] و - دېچګوړے ۔

**دېکل** :۔ (دې+ک+لْ) ، [پ (اورک) مص مت] ديکه کول، ديکه ورکول ۔

لوبه د ژوند چې شوه راکښل او دېکل

انـسان دې ژوند نـه کربلا جـوړه کـړه — (صادق الله اورکزے)

**ديکه** :۔ (دي+کَه)، [پ ه : دهکا، اس ، مؤ ، وا ،ج : ديکې] و - ديچکه ۔

**ـــ په ديکه** :۔ اِص، ساعت په ساعت، لږ لږ وخت پس ۔

**ـــ په ديکه کېدل**:۔ اِص، ډېر زيات بُوډا کېدل، ډېر ضعيف کېدل ۔

**ـــ کول** :۔ اِص ،ټېله ورکول،ديچکه ورکول، ديکه ورکول ۔

**ديکه کېدل** :۔ اِص، ټېله کېدل ۔

**ـــ ورکول** :۔ اِص ،و - ديکه کول ۔

**په ديکو ديکو** :۔ اِص، په ډېر کړان، په ډېر زحمت ۔

**وخت ديکه کول** :۔ اِص، ساعت تېرول، وخت له ديکه ورکول ۔

**ورديکه کول** :۔ اِص، ور پورې وهل،ټېله ورته ورکول ۔

چې وخت راشي د مرګ لاستے ورديکه کړي

څوک خبر چې مخکښې څهٔ ورسره کېږي — (صادق الله اورکزے)

**ديکه ستړاړ** :۔ (ديکـه+سْ+تا+رْ+ړْ)، [پ ، اس ، مـذ] هغـه ګـادے چې پـه ديکه روانېږي، خراب او زوړ ګاډے ۔

**دېکۍ** :۔ (دې+ک+ۍ)، [اَف : پ (قاموس) ، اس ،مؤ] يوه مرغۍ ۔

**دېګ** :۔ (دې+ګ) [فا ، اس ، مذ وا ، ج : دېګونه] لوے دېګچے، لوے دېکچي

دېګ ئې اېښے په دېګ دان ږومبے تر تبغ وي

چـې ئـې سـوړ د اٰه پـه تبغ نهٔ شي نغرے — (رحمٰن)

**دېګـان** :۔ (دې+ګـا+نْ)، [پ ، اس ، معرفـه ، مـذ ، وا ، ج : دېګانـان (مـؤ ، وا : دېګانه ، ج : دېګچې] ، د يوې قبيلې نُوم ۔

**دېګچے** :۔ (دېګ+چې) (پ، اس ،مذ ،وا ، ج : دېګچې) ورکوټے دېګ، دېچکے

هـر يـو کار بـه د قسمت پـه لاس چلېږي

هر دېګچي کښې به څمڅۍ وي د قسمت — (صادق الله )

**دېګ دان** :۔ (دې+ګْ+دا+نْ)، [فا ، اس ، مذ ، وا] انغرے ۔

عمـر ډېـر لري بېشماره

تورئې مخ لکه دېګ دان — (رحمت داوي)

**ديګدګو** :۔ (دي+ګ+د+ګو)[اَف :پ (قـاموس) اس] پـه اوبـو کښـې د لامبـو وهلو لوبه

**دېګړے** :۔ (دې+ګْ+ړَے)، [پ (کن) اس، مذ، وا،ج :ديګړي]،دېګچے، دېګلے

**دېګلے** :۔ (دې+ګْ+لَے)، [پ، اس ،مذ، وا، ج : دېګلي] و - دېګړے ۔

**ـــ په جوش راتلل** :۔ (اَف) اِص (۱) دېګے خوټکېدل۔(۲) غصّه کېدل ۔

**دېګ مـار** :۔ (دې+ګ+مـا+رْ)، [پ، اس، ص ،مـذ، وا ،ج : دېـګ مـاران] دېـګ پخوونکے، دېګي، تميارے ۔

**دېګوړے** :۔ (دې+ګُو+ړے) [پ ، اس تصغير ،مذ، وا ،ج : دېګوړي] و -دېچګوړے ۔

**دېګے** :۔ (دې+ګے)، [پ، اس، مذ، وا، ج : دېګي]، ورکوټے دېګ ۔

**دېګي** :۔ (دې+ګي)، [اَف : پ (قاموس)، ص]، پاکه غله ۔

**ـــ کول** :۔ اِص، غله بنهٔ صفا کول ۔

**دېلي** :۔ (دې+لي) ، [پ ، حرف] و دېلے ۔

**ديمه** :۔ (دے+مَه)، [اَف : پ (قاموس) ص] للمه، باراني زمکه ۔

**ديمه کښت** :۔ (ديمه+ک+شْ ياخْ+تْ)، [اَف : پ ، اس ، ص ، مذ] للمـه کښت، دوچوړے کرونده، د للمې زميداري ۔

**دَين** :۔ (دَے+نْ)، [اَف : (قاموس) ص ] شروع، آغاز ، تيار ۔

**ـــ کېدل** :۔ اِص ،يو کار ته په مخه لاتدې وتل، پرله پسې يو کار کول ۔

**اُوبه پسې دَين کول** :۔ (اَف) اِص، په ډوډۍ پسې پرله پسې اُوبهٔ څښـل ۔

**دِين** :۔ (دي+نْ) ، [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : دينُونه]، مذهب، ايمان ۔

که محنت او مشقت دے خو د دين دے

پـکار نـهٔ دے بـل محـنـت پـه دا دنيا — (رحمٰن)

**الهي** :۔اِص ،د اکبر بادشاه د ځانه جوړ کړے دين ۔

**دين او ايمان** :۔ اِص ،مذهب او پخه عقيده ۔

**ـــ پرېښول** :۔ اِص، بې دينه کېدل ۔

**ـــ په دنيا بدلول** :۔ اِص ،د دين په بدله کښې دُنيا خوښول ۔

**ـــ په دنيا ورور کېدل** :۔ اِص، په دواړو جهانه ور ورکېدل ۔

**ـــ دنیا** :ـ اص، مذهب او دولت، دا دُنیا او هغه دُنیا ـ

**په ـــ لوبي کول** :ـ اص، د دین او ایمان هېڅ خیال نهٔ ساتل، ځان شرمول ـ

**دینار** :ـ (دِيْ+نا+رْ)، [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج : دینارُونه] (۱) یوه سکه ـ

رحمٰـــن هســـې بېوقـــوف ســـوداګرنهٔ دے
چـــې ددیـــن متـــاع بدلـــه پـــه دُنیـــا کـــا

(۲) یو قسم باز ـ

زهٔ دانهٔ وایم چې زهٔ هوښیار بېدار یم
زمـا هـم دلاسـه لاړ دي څو دیناره (خوشحال)

**دیـن دار** :ـ (دِيْ+نْ+دا+رْ)، [فـا ، اس ، ص ، مـذ ، وا ، ج : دیـن داران (مـؤ ، وا : دیـن دارَه ،ج : دیـن دارې] هغـه څـوک چـې د مـذهب پـا بنـد وي، مـذبي بنیادم ـ

**دیـن داري** :ـ (دیـن+دا+ريْ)، [فـا ، اص ، مـؤ] د شـریعت پابنـدي، د مـذهب پابندي، پرهېزګاري، تقوٰی داري ـ

هســـې پـټ مـهر پـه قهر کښې کړي ښکلي
لکه څوک چې کفرستان کښې دینداري کړي
(حمید)

**دېره** :ـ (دِي+رَه) [پ ، (اُس)اس ، مؤ ، وا ، ج : دېرې] دېره، دغوایانو ګواره یا ټاله، ګله ـ

**دیـن ښـوان** :ـ (دِيْ+نْ+ښْ یـاخُ+وا+نْ)، [آف : پ (قـاموس) اس ، مـذ] مُجتهد ـ

**دینګ** :ـ (دِيْ+نْ+ګْ ، [آف : پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج : دینګونـه (مـؤ ، وا دینګَه ،ج : دینګې] (۱) لک، ولاړ ـ (۲) ډېنډت ـ

**ـــ درېدل** :ـ (آف) اص، نېغ اُودرېدل ـ

**دینګ کېدل** :ـ (آف) اص، نېغ نېغ کېدل ـ

**دیني** :ـ (دِيْ+نِيْ)، [پ ، ص ] ، مذهبي، د دین ـ

**ـــ خبرې** :ـ اص ،داسې مسئلې چې دین سره ئې تعلق وي ـ

**دینیات** :ـ (دِيْ+نِ+یا+تْ)، [ع ، اس ، مذ] د دین علم، اسلامیات ـ

**دینین** :ـ (دِيْ+نِيَ+نْ)، [پ (وز) ، اس ، مذ] ډاډه، تراړه، بتيی، دُومه ـ

**دیو** :ـ (د+یو)، [پ ، کلمه] دوئې، دې خلقو ـ

**دېو** :ـ (دې+وْ)، [فا ، اس ، مذ وا ج : دېوان] (۱) بلا، برمائُو، عفریت ـ (۲) غټ بنیادم ـ

**ـــ اودد** :ـ اص، بلاګاني، دېو او ځناور ـ

**دیوار** :ـ (دِيْ+وا+رْ)، [فا ، اس ، مذ ، وا] دېوال، پناهي ـ

کـه د اوسپنې حصار تـر ځان چاپېر کړې
ښــیـښنه اوګــنـه دیــوار د دې دُنیــا (رحمٰن)

**دېـوال** :ـ (دې+وا+لْ ، [پ فـا : دیـوار ، اس ، مـذ ، وا ، ج : دېوالُونـه] د کـاڼو، لُوټو خښتو یا خټو نه جوړ شوے تعمیر یا پرده، پناهي ـ

صورت ګر چې ښهٔ صورت په دېوال سازکا
کُـل عـالم ئې پـه صنعت ذبـان دراز کا (خوشحال)

**ـــ اچول** :ـ اص ،دېـوال جوړول، دېـوال اُوچتـول، دېـوال خېـژول، دېـوال اُودرول ـ

**ـــ اوچتول** :ـ اص، و - دېوال اچول ـ

**ـــ اُودرول** :ـ اص، و - دېوال اچول ـ

**ـــ په دېوال** :ـ اص ،خوا په خوا، یو بل سره جُخت، ډېر نژدې ـ

**ـــ تـه سر تمبه کـول** :ـ (آف) اص، (۱) دېـوال پـورې سـرلګول، دېـوال تـه سـر اړم کول ـ (۲) په خپله خبره ټینګ اُودرېدل، د خپل ضد نه نهٔ اوښتل ـ

**ـــ ته لتې ورکول** :ـ اص، ناشونې کار کول، ځان عبث کړول ـ

**ـــ خېژول** :ـ اص، و - دېوال اچول ـ

**ـــ راګښل** :ـ اص، وېش کول، حدبندي کول ـ

**ـــ کښېنتل** :ـ اص، دېوال پرېوتل، دېوال نړېدل ـ

**ـــ کېدل** :ـ اص، (۱) د چا مخه بندول ـ (۲) د چا په مرسته اُودرېدل ـ

**ـــ ګرځول** :ـ اص ،دېوال تاؤول ـ

سترګې دې سرې لکه د زرکې
ترې ګرځېدلې د رنجو تور دېوالُونه! (ټپه)

**ـــ لېوول** :ـ اص، دېوال ته لېو ورکول ـ

**ـــ نړېدل** :ـ اص ،و - دېوال کښېښتل ـ

**په ـــ تپل** :ـ اص، (۱) عبث ښهٔ کول ـ (۲) سوټې په دېوال پورې کول ـ

**د ـــ د سر څپیاکه** :ـ اص ،ډېر کمزورے او بې وسه بنیادم ـ

**دیـوالچي** :ـ (دِيْ+وا+لْ+چِيْ ، [پ (سو) اس ، مـذ ، وا ، ج : دیوالچیـان] دېـوال جوړوونکے، ګوړو ـ

**دېوال غویـک** :ـ (دې+وا+لْ+غْ+و+يَ+کْ، [آف : پ (قاموس) اس ، مذ]توردلے، رنجو مکے، شین غوړے، سلېماني مرغهٔ ـ

**دېـــوالګیر** :ـ (دې+وا+لْ+ګـــي+رْ [پ ، فــا : دیـــوارګیر ،اس ، مـــذ ، وا ،ج : دېوالګیرُونه]

د جامو د خوړند کولو د پاره په دېوال کښې لګولې لرګې چې بهرتـه کُنـډې پکښې راوتې وي ـ

**دیواله** :ـ (دِيْ+وا+لَه)، [اس ، مؤ ، وا] دیوالیه، ډیوالي ـ

**ـــ کول** :ـ اص، ډیوالي کول، دیوالیه کول ـ

**ـــ کېدل** :ـ اص ،ډیوالي کېدل، دیوالیه کېدل ـ

**دیـوالي** :ـ (دِيْ+وا+لـيْ)، [ه ، اس ، مؤ] د هنـدوانو یـوه مـذهبي دوسـتوره چې ډیوې پکښې بلوي ـ

**دیوان** :ـ (دِيْ+وا+نْ)، [فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : دیوالُونـه] (۱) شاهي دربـار ـ (۲) د شعرونو کتاب ـ

درســت دیــوان د رحمٰــن خــار تــر دا غــزل شــه
چـــې بیـــان ئـــې کـــړو کـــردار د درویشــانو

(۳) د پخوانی زمانې یو منصب ـ

**ـــ جوړول** :ـ اص، د شعرونو کتاب تیارول، دیوان لیکل ـ

**ـــ لګول** :ـ اص، دربار لګول ـ

**ـــ لیکل** :ـ اص، و - دیوان جوړول ـ

**دیوان خاص** :ـ (دیوان+خا+صْ ، [فا ، اس ، ص ، مذ] د پخوانو بادشاهانو د خاصو خلقو د مجلس ځاے، خاص دلبار ـ

**دیـوان خانـه** :ـ (دیوان+خا+نَـه)، [فـا ، اس ، ص ، مـؤ ، وا ، ج : دیـوان خـانې]د امیرانو د کښېناستو کمره ـ

**دیـوان عـام** :ـ (دیوان+عـا+م) (فـا ، اس ، ص ، مـذ) د پخوانو بادشاهانو د عـامو خلقو د مجلس ځاے د عامو خلقو دلبار ـ

**دیوانه** :ـ (دِيْ+وا+نه) (فا ، اس ، مذ ، وا ، ج : دیوانه ګان) لېونے، پاګل، مجنون، سودائي ـ

**ـــ کول** :ـ اص ،لېونے کول، مجنون کول ـ

**ـــ کېدل** :ـ اص، لېونے کېدل، مجنون کېدل ـ

**ـــ ګرځېدل** :ـ اص، سروهلے بروهلے ګرځېدل، لېونے شورېدل ـ

**دیوانه تـوب** :ـ (دیوانـه+تو+بْ)، [پ ، اس ، مـذ] دیوانګي، لېونتـوب، پاګل توب

**دیوانګي** :ـ (دیوان+ګِيْ)، [فا ، اس ، مؤ] و - دیوانه توب ـ

**دیواني** :ـ (دِيْ+وا+نِيْ)، [فا ، ص] هغه عدالت چې د جائېداد مقدمې پکښې فېصله کېږي ـ

**دېوبنـد** :ـ (دېـو+بَ+نْ+دْ)،د [اس ، معرفـه ، مـذ] ، پـه هندوستان کښې د یـو ځاے نُوم چې یوه ډېره لویه اسلامي مدرسه پکښې ده ـ

**دبوبندي** :۔ (دبو+بَ+نْ+دِيْ)، [ص ، مذ ] (۱) د دبوبند د مدرسې نه فارغ شوے۔(۲) د دبوبند سره تعلق لرونکے۔

**دبودار** :۔ (دې+وْ+دا+رْ)، [ه ، اس ، مذ ] ،ديار ، د نښتر د کورنۍ يوه وُنه ۔

**دبوده** :۔ (دې+وْ+ده)، [اَف :پ (قاموس)اِس ، مؤ] د سترې مشې دزې۔

**ـــ کول** :۔ (اَف) اص، د هر کلي او سترې مشې دزې کول ۔

سره تعلق لرونَکے ۔

**دبوتـا**:۔(دې+وْ+تـا) [ه ،اس،مـذ ،وا ،ج:دبوتاګان] ،زبرګ،د هنـدوانو د عقيـدې مطابق هغه څوک چې خرق عادت طاقت لري-

**دبوسه** :۔(دې+وْ+سه)، [اَف :پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج : دبوسه ګان]

و - دبسه ۔

**ديوسه** :۔ (دَ+يُوْ+سَه)، [پ (مر) اس ، مؤ] دوُوسي، لکه : پرديوسه ورواړېد ۔

**دبوه** :۔ (دې+وَه) ، [پ(شن) اِس ، مؤ ،وا] د دبو مؤنث۔

يـوه دبـوه ئې لېدلې

دې خېمه وه اُودرولې (طالب رشيد)

**دبوي** :۔ (دې+وِيْ) ، [ه ، اِس ، مؤ، وا ، ج : ديويانې] هغه بُت چې د زنانه په شکل جوړ کړے شوے وي او هندوان ئې پُوجا کوي۔

◈◈◈

# ډ

**ډ** :- (ډا+لْ)، [پ ، حرف] ، د پښتو د الف بې د پټې ځوارلسم توری -

**ډابه**:-(ډا+بَه)، [پ (بنو) اِس مؤ وا ج: ډابې] بیره، تعدي، تلوار -

**ــــ کښېنول** :- (بنو) اِص، بیره کول، تلوار کول -

**ډاټ** :- (ډا+ټْ)، [ه، اِس، مذ ، وا ، ج: ډاټُونه] ، محراب -

**ــــ ورکول** :-اِص، د خاورې یا کوئېلې کنستلو په وخت کښې مزدور چې جرې ورکړي او د خټو یا کوئېلې دربلے راواچوي -

**ډاټسن** :- (ډا+ټْ+سَ+نْ)، [اِس، مذ ، وا ، ج: ډاټسنُونه، ډاټسنې] ، یو جاپاني ګاډے

**ډاډ** :- (ډا+ډْ) [پ ، اِس ، مذ] (۱) تسله، تسلي، ډاډګېرنه، سود -

ښهٔ توښه مې نهٔ شي په تش ډاډ د کور وکلي

مرد بویه چې واخلي د غم پېټے له غمګینه (رحمٰن)

(۲) ډاډ ، پړسېدلے-(۳) خفه، زهیر، ناراضه -

**ــــ ډاډګرځېدل** :- (ب،خ) اِص ،(۱) په کبر کښې ګرځېدل، ځان لوے شمارل-(۲) خفه خفه ګرځېدل، ناراضه شورېدل -

**ــــ مُوندل** :-اِص ،تسلي حاصلېدل، ډاډګېرنه موندل، خاطر جمع کېدل -

**ــــ ورکول** :-اِص ،تسلي ورکول، ډاډګېرنه ورکول -

که لږ ډاډوما حمید راکه په عشق کښې

نشته بل یار و اشنا قریب زما

**ډاډ** :- (ډا+ډْ)، [پ (ب،خ) ص] ، ډډ ، پړسېدلے -

**ــــ باډ** :- (ب،ډ) اِص ،ښهٔ پړسېدلے، ډېر غټ، ډډبډ -

**ډاډر** :- (ډا+ډَ+رْ)، [پ ، اِس معرفه] د مانسهرې په ضلع کښې یو ځاے چې د نري رنځ د علاج لوے هسپتال پکښې دے -

**ډاډګیرنه** :- (ډاډ+ګيْ+ر+نهَ)، [پ ، اِس مؤ وا ج: ډاډګېرنې] ، و - ډاډ -

ځکه چې ستا په ډاډګېرنه به مې زړهٔ ډاډه وو

لکه فرهاد مې بې ستون ته حوصلې زیاتېدې (پرېشان خټک)

**ډاډمن** :- (ډاډ+مَ+نْ) ، [پ ، اِس، ص ، مذ ، (مؤ ،وا: ډاډمنه، ج: ډاډمنې] ، ډاډه، خاطرجمع، زړهٔ ور -

زما زړهٔ په دا ډاډمن دے

غم ښادي دواړه تېرېږي (خوشحال)

**ډاډنه** :- (ډا+ډ+نه)، [پ ، اِس ، مؤ] ډاډګېرنه -

**ډاډول** :- (ډا+ډو+لْ) ، [پ ، مص مت] (۱) تسله ورکول، ډاډ ورکول-(۲) ډډول، پړسول، باد ورکول-(۳) خفه کول -

**ډاډه** :- (ډا+ډَه)، [پ ، ص] خاطر جمع، زړهٔ ور -

پینځهٔ میاشتې یم په بند کښې

بابا ډېر ډاډه په زړهٔ یم (خوشحال)

**ــــ کول** :-اِص، تسلي ورکول، زړهٔ ورول -

**ــــ کېدل** :-اِص، زړهٔ ورکېدل، تسلّه پیدا کېدل -

**ډاړه** :- (ډا+ړه') [پ ، اِس ، مؤ] (۱) ډوډه، تراړه، د غنمو یا جوارو وربي ورتونه، دینین (۲) د غنمویا د اوربشو شین فصل چې په څاروو د خوړلو جوګه وي-

سرې اوربشې لووې

غنم ډاډه تنکي شان (خوشحال)

(۳) ډډ ، پړسېدلے-(۴) اړخ، ډډه -

**ــــ اچول** :-اِص، (۱) وربي په اور ورتول، تراړه کول، ډاډه وریتول-(۲) ډډه لګول، اړخ لګول -

**ــــ چیچل** :-اِص، تراړه خوړل،وربي خوړل -

**ــــ کول** :-اِص، و - ډاډ اچول -

**ــــ وریتول** :-اِص ، و - ډاډه اچول -

**په ډاډو خوړل** :- (ب،خ) اِص ،په ډاډے خوړل، فصل په شنه کښې خوړل، د وخت نه وړاندې څهٔ کار کول -

**په ډاډے خوړل** :- (بنو) اِص، و - په ډاډ وخوړل -

**ډاډې لګېدل** :-اِص ،(ب،خ) ،اړخ لګېدل، په یو ځاے کښې خوشحالېدل -

**ډاډینه**:-(ډا+ډِيْ+نه) [اَف: پ (قاموس) اِس ، مؤ] ډاډنه، تسله ورکونه -

**ډاډېیل** :- (ډا+ډې+ي'+لْ)، [پ ، مص مت] تسلّه ورکول -

**ډاډېیلے** :- (ډا+ډې+ي+لےَ)، [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ډاډېیلي ، مؤ: ډاډېیلې] ، تسله ورکړے شوے -

**ډاډېینه** :- (ډا+ډې+ي+نهَ)، [پ ، حمص] تسلي ورکونه -

**ډاډېیُونکے** :- (ډا+ډې+یُوْ+نْ+کےَ) ، [پ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: ډاډېیُونکي ، مؤ: ډاډېیونکې] ، تسلّي ورکوُونکے -

**ډار** :- (ډا+رْ)، [پ، اُر:ډر،اِس ، مذ] ، ویره، خوف -

چې دې اُوکنځي مرګ نهٔ دے

که له تا نهٔ وي په ډار (خوشحال)

**ــــ کول** :-اِص، ویرېدل،یره کول -

لکه ډار کاندي ورغومي له ګُرګانو

هسې رنګ له جدائۍ نه زما ډار شي (خوشحال)

**ــــ کېدل** :-اِص، یرېدل، ویرېدل، ډارېدل -

ښامارانو غوندې ګرځي په ګنجُونو

نهٔ شي هیڅ په زړهٔ کښې ډار د تورو زلفو (رحمٰن)

**له ډاره** :-اِص، له یرې -

اندرون مې خاطر درست پاره پاره شهٔ

اوله خُولې نه مې فریاد له ډاره نهٔ شي (خوشحال)

**ډاران** :- (ډا+را+نْ) ، [پ (ب،خ) ص ، مذ] ډرتان، ډزان، ډرتو، تیزن ، یرندُوکے،ډارن -

**ډارماګو** :- (ډار+ما+کُو') ، [اَف: پ (قاموس) اِس ، مذ] ، یو مشهور بُوټے چې په شولو کښې راټوکېږي -

**ډارن** :۔ (ډا+رْ+نْ ، اپ ، اس ، ص ، مـذ ، (مـؤ ، وا: ډارنـــه ،ج: ډارنـــي)] ، ډرېدونکے ، يرېدونکے ،يرندُوکے ،تيزن ۔

**ډارندُوکے** :۔ (ډا+ر+نْ+دُوْ+کےَ ، اپ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: ډارندُونکي ، مؤ: ډارندُوکي] ، بې زړيه، ډارن ۔

**ډارول** :۔ (ډا+ر+و+لْ ، اپ ، مص مت] ، يرول، ويرول ۔

**ډارولے** :۔ (ډا+ر+و+لےَ [اپ، مف ، مذ ،وا ، ج: ډارولي ،مؤ: ډارولې] ،ويـرولے ، يرولے ۔

**ډارون** :۔ (ډا+رْ+و+نْ ، [انګ ، اس معرفه ، مذ] ، يو انګريز چې د طبعيـاتو د علم ماهر وو ، او هغه بنيادم په سر کنبې بيزور يا شادوبيانوي او بيـا رو رو د ارتقاء په اصولو د بنيادم شکل تـه رسېدلے دے ،ولې اسلام د دې نظرئې په سختئ سره رد کوي ۔

**ډارونګ** :۔ (ډا+ر+و+نْ+ګْ ، [اَف: پ (قاموس) ، حمص] ،ډارونه، يرونه، ويرونه

**ډارونه** :۔ (ډ+ر+و+ن+نَه ، اپ ، حمص] ، و۔ډارونګ ۔

**ډارووُنکے** :۔ (ډا+ر+ووُ+نْ+کےَ ، اپ ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ډاروونکـي ، مـؤ: ډاروونکې] ، ويروُنکے ، يروُونکے ۔

**ډاره** :۔ (ډا+ره)[اَف:پ (قاموس) (اس، مؤ، وا، ج: ډارې] ،د دروازې له پاسه جوړه چجه

**ډاره** :۔ (ډا+رَه ، اپ (ګن) اس ، مؤ ، وا ، ج: ډارې] ، ځانګه ۔

**ډارې**:۔ (ډا+رې) اپ (ظفر) اس ، مؤ] ، د ګبينهٔ يا شاتو د مچو ګګ ۔

بې لشو ترې هيڅ حاصل کولے نهٔ شم

کــه لاس اُومنــډم د شـاتو په ډارې (حافظ الپوري)

**ډاربدل** :۔ (ډا+رې+د+لُ اپ ، مص لا ويربدل، يربدل ۔

**ډاربـدلے** :۔ (ډا+رې+دلےَ ،اپ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: ډاربـدلي، مـؤ : ډاربـدلې] ، ويربدلے، يربدلے ۔

**ډاربـدنګ** :۔ (ډا+رې+دَ+نْ+ګْ [اَف: پ (قـاموس) ، حمـص] ډاربدنـه، ډاربـدهٔ، يربدنه، ويربدنه ۔

**ډاربدنه**:۔ (ډا+رې+د+نهَ ،اپ ،حمص] ، و ۔ ډاربدنګ ۔

**ډاربـدُونکے** :۔ (ډارې+دُوْ+نْ+کےَ ،اپ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: ډاربـدُونکي ، مـؤ: ډاربدُونکې] ، ويربدوُنکے ، يربدُونکے ۔

**ډاربدهٔ** :۔ (ډا+رې+ره) ،اپ ، حمص] ،و ۔ ډاربدنګ ۔

**ډاک** :۔ (ډا+کْ ، اپ (ب ،خ) ، ص] (۱) ډک، پُور، ترخولې پورې۔(۲) موړ ۔

**ـــ ډُوګ** :۔ (ب،خ) اص، بنهٔ موړ ۔

**ډاک** :۔ (ډا+کْ ، [ه ، اس، مـذ ، وا ، ج: ډاکُونـه] (۱) د چټيـانو تېلـه يـا کځوړه ۔ (۲) چټياني، ډاک ۔

**ـــ استول** :۔اص، چيټئ لېږل ۔

**ـــ بندول** :۔اص، چټياني په تېله يا کځوړه کنبې بندول او بل ځاے ته لېږلو ته تيارول ۔

**ـــ تقسيمول**:۔ اص ،ډاک وېشل، چټياني خلقو ته ور رسول ۔

**ـــ خلاصول** :۔اص(۱) د ډاکخانې اهلکار چې د بهر نـه راغلې چيټانې د ببدو کځوړو نـه راوُباسـي او خپلـو خپلوخـانو کنبـې ئـې کېـږدي۔ (۲) راغلـې چيټانې لوستل

**ـــ را ايستل** :۔اص ،د لېټر بکس نه چيټانې رابهر کول ۔

**ـــ کتل** :۔اص ،راغلې چيټانې لوستل ۔

**ـــ وړل** :۔اص، چيټانې خپل ځاے ته رسول ۔

**ـــ وېشل** :۔اص، و ۔ ډاک تقسيمول ۔

**ډاک بنګلـه** :۔ (ډاک+بَ+نْ+ګْ+لَـه ، اپ ، اس، مـر، مـؤ، وا، ج: ډاک بنګلـې] ، سرکارې مسافر خانه چې سرکارې اهلکار يو څو شپې پکنبې پاتې

کېدے شي ۔

**ډاکټـر** :۔ (ډا+کْ+ټ+رْ [انـګ ، اس، مـذ ، وا، ج: ډاکټـران (مـؤ، وا: ډاکټـره، ج: ډاکټرې)] ، طبيب، علاج کوُونکے ۔

خــوبــولې ئې بېدار کړل پاتې شوې ئې سيالان کړل

ګڼ ئې جوړ انجنيئران کړل ډېرئې دلته ډاکټران کړل (پرېشان خټک)

**ډاکټرې** :۔ (ډا+کْ+ټ+رې ، اپ ، اس ، مؤ] ، طبابت، د طب کار، د علاج کار

**ـــ کول** :۔اص، د علاج معالجې کار کول، د طب کار کول ۔

**ډاکخانه** :۔ (ډا+ک+خا+نَه ، اپ ، اس، مر، مؤ، وا، ج: ډاکخانې] ، هغـه ځـاے چې د ډاک استولو او اخستلو بندوبست پکنبې کولے شي ۔

**ډاکه**:۔ (ډا+که) اپ ، اُر: ډهاکه، اس معرفه] ، د بنګله دېش صدرمقام ۔

**ډاکه**:۔ (ډا+کَه اپ ، اس، مؤ، وا، ج: ، ډاکې] ،داړه، غدی، د ډاکوانو حمله ۔

**ـــ اچول** :۔اص، لُوټ کول ،لُوټل، ډاکه کول ۔

**ډاکه ـ کول** :۔اص، و ۔ ډاکه اچول ۔

**ډاکه مار** :۔ (ډا+که+ما+رْ ، اپ، اس ،ص، مذ، وا، ج: ډاکه ماران (مؤ، وا: ډاکه ماره ،ج: ډاکه مارې يا ډاکه مارانې)] ډاکو، شُوکمار، داړه اچووُنکے ۔

**ډاکــه مـارې** :۔ (ډاکـه+ما+رې ، اپ ، اس ، مـؤ] ، شُـوکه، غـدی اچونـه، لُـوټ مارکونه

**ـــ کول** :۔اص ،غدی اچول، لُوټل ۔

**ډاکي**:۔(ډا+کيْ اپ ، اُر: ډاکيا ،اس، مذ، وا، ج: ډاکيان] ،چټي رسان، ډاکي ۔

**ډاګ** :۔ (ډا+ګْ ، اپ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: ډاګُونـه] ، (۱) هـوار مېـدان۔(۲) ډاک۔ (۳) سپېرهٔ مېدان چې زرغونه پکنبې نهٔ وي ،شاړمېدان ،

چې ورتلهٔ دې باندې نهٔ وي سپېره ډاګ وي

په راتلهٔ دې شي درست ملک دبورجل باغ (خوشحال)

**پرسپين ډاګ غابنې وتل** :۔اص ،چاته داسې زيان رسېدل چې په خيال کنبـې ئې هم نهٔ راځي ۔

**پرسپين ډاګ غابنې ورايستل** :۔اص، څوک په سُود سودا کنبې په غړولو سترګو تېرېستل ۔

**په ډاګ وېشتل** :۔اص (۱) په زمکه راوېشتل۔(۲) بربادول۔(۳) بې اسرې پرېښول

**سپېرهٔ ډاګ** :۔اص، خشکه مېره، شاړه ډاګه ۔

چې ورتلهٔ دې باندې نهٔ وي سپېرهٔ ډاګ وي

په راتلهٔ دې شي درست ملک د بورجل باغ (خوشحال)

**کور ډاګول** :۔اص ،کور ورانول، کور تباه کول ۔

**کورډاګېدل** :۔اص، کور ورانېدل، کور تباه کېدل ۔

**کور سپين ډاګ اچول** :۔اص ،د کورنه هر څهٔ وړل ۔

**ډاګ اسـماعيل خېـل** :۔(ډاګْ+ا+سْ+مـا+عيْ+لْ+خيْ+لْ ،اپ، اس معرفه] ،پـه نوښار تحصيل کنبې د اکوړه خټکو د يو کلي نوُم ۔

**ډاګ بېسود** :۔ (ډا+ګْ+بې+سُوْ+دْ ، اپ ، اس معرفه] په نوښار تحصيل کنبې د يو کلي نُوم ۔

**ډاګـه** :۔ (ډا+ګَـه ، اپ ، اس، مـؤ، وا ، ج: ډاګـې] ،(۱) د بجلـی سـتن يـا متـه۔ (۲) د چت لويـه کـړی۔(۳) هغـه لويـه ډنـډه چـې مړزانـو خلتـې پـرې را اوېزاندي وي۔ (۴) هوار او شاړمېدان۔

ځـــم د لنــډې ســره روان شــم د نــوښـار په ډاګو

خو چې په خود شم زړهٔ مې اُوچوي ترې خبېرجوړ شي (پرېشان )

**په ډاګه وئيل** :۔اص ،سپينه خبره کول ۔

**ډاګی** :۔ (ډا+ګ+ئی ، [اَف:پ (قاموس) امؤ] ، وړه دُونکانچه يا ډمبورې۔

**ډاګی** :۔ (ډا+ګ+ئي ، اپ، اس معرفه] ،(۱) دنوښار په تحصيل کنبې يو کلے ۔ (۲) د چارسدې په تحصيل کنبې يو کلے ۔

**ډاګې** :- (ډا+ګې)، [اَف: پ (قاموس) اس ، مذ] (۱) هلک باز. (۲) هغه ځوک چې تندے ئې لوے وي. (۳) خرڅي، فضول خرڅ.

**ډاګي** :- (ډا+ګيْ) [پ ، اُر: ډاکيا اس، مذ، وا، ج: ډاګيان] و- ډاکي.

**ډاګي** :- (ډا+ګِيْ)، [پ ، ص ، مذ، وا، ج: ډاګيان] ، (۱) په ډاګه خبره کوونکے، سپينه خبره کوؤنکے. (۲) بې کوره اوسېدونکے.

په سر پوښ محل کښې نُور د افتاب نۀ وي
دا دولت دے نـــازل شـــوے پـه ډاګيانو (رحمٰن)

**ـــ خبره** :- اص ، سپينه خبره، صفا وېنا ، بې مخ ملاحظې خبره.

**ډاګي کمتـره** :- (ډا+ګي+ک+مْ+ت+رَه)، [پ (ګن) اس، ص، مؤ ،وا، ج: ډاګي کمترې] ، غرئيزه کونتره، صحرائي کونتره.

**ډال** :- (ډا+لْ)[پ ، ه: ډهال ، اس، مذ، وا، ج: ډالُونه] ، کنګل ، د غټې او کلکې څرمن يو غونډه ټکړه چې مېنځ ئه لږ بهرته راوتے وي، ځاے په ځاے غټې ميخونه پکښې لګېدلي وي او د تُورو په جنګ کښې د ځان بچ کولو دپاره استعمالېږي.

**ډال** :- (ډا+لْ)، [پ (ب،خ) اس ، مذ، ج] ډل ، شله، د څربې نه ويستلې شوي غوړي

**ډال باز** :- (ډا+لْ+با+زْ)، [اَ:پ (قاموس) اس ، مذ] ، بازيګ، هغه ځوک چې په لکو شوو پرو باندې لوبې کوي.

**ډال باچ** :- (ډا+لْ+با+چْ)، [پ (ب،خ) اس ، مذ، وا، ج: ډل باچُونه] ، ډال باش، د ماليې يا کلنګ هغه فهرست چې پټواري ئې جوړ کړي او بيا ئې ملک ته حواله کړي چې د زمکې مالکانو نه مقرر کلنګ را غونډ کړي

**ډال باش** :- (ډا+لْ+با+شْ) [پ (ګن) اس، مذ، وا، ج: ډال باشُونه] ،و- ډال باچ

**دال غـارے** :- (ډا+لْ+غا+رے)، [پ، اس، ص، مذ، و، ج: ډال غـارې] ، د کنګل خښتن، د ډال مالک.

**ډال وډيل** :- (ډال+و+ډيْ+لْ) [پ ، ص ، مذ) ډيل ډول، فېشن.

**په ډال و ډيل کښې کېدل** :- اص ،بنۀ فېشن کول، ځان جوړول يا سمبالول.

**ډالر** :- (ډا+لَ+رْ)، [اَنګ ، اس، مذ، وا، ج: ډالرُونه] ، ډالرې، يوه سکه.

ع پټ په زړۀ کښې عاشق هر يو په ډالر دے (محمد هاشم زماني)

**ډالی** :- (ډا+ل+ئی)، [پ ، اس، مؤ، وا، ج: ډاليانې] ، (۱) تحفه، سوغات، ډووه.

ازغو کښې په چل تېرشه کړه ګلونه ترې راټول
صادقـــه ګـــران اشـــان ته ترې ډاليانې جوړوه (صادق الله )

**ډامبُورے** :- (ډا+مْ+بو+رے)، [پ ، اس، مذ ، وا، ج: ډامبُورې] ، (۱) ډېرے، دلۍ، انبار. (۲) دُوکانچه.

**ډانډ** :- (ډا+نْ+ډْ)، [پ ، اس، مذ ، وا ، ج: ډانډې ، ډانډُونه] ، (۱) ډانډے، ډنډ، (۲) ډنډ ، تالاؤ.

**ډانډت** :- (ډا+نْ+ډ+تْ) [پ، اس، مذ ،وا، ج: ډانډتُونه] ،ډانډس، ډنډت، ډغ

**ډانـډتي** :- (ډا+نْ+ډ+تيْ) ، [پ ، اس، ص، مـذ ، وا، ج: ډانـډتيان] ، ډينـډپ، ډانډسے، ډانډس والا، نتداپ.

**ډانډس** :- (ډا+نْ+ډ+سْ)[اَف:پ (قاموس) اس ،مذ ،وا، ج: ډانډسُونه ] ،و - ډانډت

**ډانـډس والا** :-ډانـډس+وا+لا، [اَف:پ (قاموس) اس، ص، مذ، وا، ج: ډانـډس والان] ، و - ډانډتي.

**ډانډسے** :- (ډا+نْ+ډ+سے)[اَف: (قاموس) اس ، ص، مذ، وا، ج: ډانډسيان] و - ډانډتي

**ډانډسـي** :- (ډا+نْ+ډ+سيْ)، [اَف: پ (قاموس) اس ، مؤ] ، د ډانـډت کـار، ډينډپ توب، نتداپ توب.

**ـــ کول** :- اص، ډينډپ توب کول، د ډانډت کار کول، نتداپ توب کول.

**ډانډلکی** :- (ډا+نْ+ډْ+ل+ک+ی) [پ ، اس ، مؤ] ، توراني، ډانګ لکی، يو قسم توره مرغۍ چې اوږده لکۍ ئې وي، برېيته.

**ډانډورے** :- (ډا+نْ+ډُو+رے)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ] ، د بزو پرله پسې اواز.

**ډانډوغ** :- (ډا+نْ+ډُو+غْ)، [اَف: پ (قاموس) اس، مذ، مؤ: ډانډُوغـه] ، روستنے، روستو پاتې، وروستنے.

**ـــ کول** :- اص ،دُمبال اخستل، د ټولونه روستوتلل.

**ـــ کېدل** :- اص، شاته شاته تلل.

**ډانډوکی** :- (ډا+نْ+ډُو+ک+ی)، [پ ، اس ، مؤ] ، لامبو، تارۍ، اب بازي.

**ـــ وهل** :- اص، لامبو وهل، تارۍ وهل، اب بازي کول.

**ډانډول** :- (ډا+نْ+ډو+لْ)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ] ،شُعْله، د لمبې پړک.

**ډانـډولی** :- (ډا+نْ+ډو+ل+ی) ، [پ ، اس ، مؤ] ، زام، زمبـولې، ډنګـه ډولـۍ، ځوک د دواړو لاسو او دواړو پښو نه نيول او ټالۍ ورکول.

**ـــ کول** :- اص، زام زمبولۍ کول، ډنګه ډولۍ کول.

**ډانډولے** :- (ډا+نْ+ډو+لےَ) ، [اَف: پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: ډانـډولي، مؤ: ډانډولۍ] ، هغه ځوک چې په ډانډولۍ کښې بل ته جُوټې ورکوي.

**ډانډه** :- (ډا+نْ+ډَه)، [پ (بن) اس، مؤ، وا، ج: ډانډې] ، ډنډ ، تالاؤ.

**ډانډی** :- (ډا+نْ+ډ+ی) ، [پ ، اس، مؤ] ، (۱) د تلې ډنډۍ. (۲) د اور هغـه لمبه چې لوګے هم ورسره وي. (۳) د غوږونو والۍ يا لښته.

**ډانـډے** :- (ډا+نْ+ډےَ) ، [پ ، اس، مـذ ، وا ، ج: ډانـډي] ، (۱) ډانـډر، ډانـډ. (۲) د انګور ګوچه.

**ډانډے** :- (ډا+نْ+ډَے)، [پ، اس، مذ، وا، ج: ډانډې] ،ورکوټے وچ لرګوټے.

**ډانس** :- (ډا+نْ+سْ) [انګ، اس، مذ، وا، ج: ډانسُونه] ، ګډا ، نڅا.

**ـــ کول** :- اص ،ګډيدل، نڅېدل.

**ډانکه** :- (ډا+نْ+کَه) ، [اَف: پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: ډانکې] ، د سورو نغاره.

**ډانـګ** :- (ډا+نْ+ګْ)[پ ، اس، مـذ ، وا، ج: ډانګونـه] ، غـټ کوتـک، مظبـوط سوټے، ګرز

د پيرۍ علاج په دانګ او لوړ نۀ شي
دغـــه کار بـــه په عصا کوې ترګُومه (رحمٰن)

**په ډانګ پيلي خبره** :- اص، صفا خبره، سپينه خبره.

**په ډانګ پيلي خبره کول** :- اص ،سپينه خبره کول، صفا خبره کول.

**په ډانګ پيلي خبره کېدل** :- اص ،سپينه خبره کېدل، صفا خبره کېدل.

**په ډانګ خبره کول** :- اص،خامخاخبره زياتول،خبره اُوږدول، د جنګ خبره کول.

رقيب د يـرې نه نزدې نۀ راځي
زۀ په ډانګونو کښې خبرې کوم (دادمحمد دلسوز)

**ډانګ ډېلي** :- (ډانګ+ډ+ب+ليْ)، [پ ، اس ، جمع] ، اسباب، د کور سامان.

**ـــ اخستل** :- اص ،د تلونيت کول، خپل سامان راټولول او روانېدل.

**ـــ راوړل** :- اص، خپل سامان راوړل او د ځا کره مېلمه کېدل.

**ـــ غورځول** :- اص ،خپل سامان د ځا په کور غورځول او بانډه کېدل.

**ـــ ورته په سر کول** :- اص، ځاته سامان ورپه سر کول او د کوره ايستل

**ډانګر** :- (ډا+نْ+ګَ+رْ)، [پ (ب،خ) ، ص، مـذ ، (مؤ، وا: ډانګره ،ج: ډانګرې)] ، کمزورے، خوار، مانده، نرے نروُچکے.

**ډانګری** :- (ډا+نْ+ګ+رَ+ی)، [پ انګ: ډانګري، اس ، مؤ] ، هغـه جامـه چـې مسـتريان ئـې د کـار کولـو پـه وخت کښـې اغونـدي،پتلون او جيکټ يو ځاے سره ګنډلي وي اکثر د خړ جيم نه جوړولے شي.

**ډانګ لکۍ** :- (ډا+نْ+ګْ+ل+ک+ۍ)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ] ، و - ډانډلکۍ.

**ډانګو** :- (ډا+نْ+ګُو)، [پ ، ص]، دنګ بنیادم، ډانګور -

**ډانګور** :- (ډا+نْ+ګ+و+رْ) [پ، ص، مذ ، (مؤ، وا: ډانګوره، ج: ډانګورې)] ،و- ډانګو -

**ډانګورے** :- (ډا+نْ+ګُو+رَے)، [پ، اس، مذ، وا، ج: ډانګورې] ، څباړی، هغه لرګے چې معزور خلق ئې په تخرګ کښې ورکړي او د هغې په زور ځي -

**ډانګه** :- (ډا+نْ+ګه)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ] (۱) ګوډه.(۲) د ټیلیفون ستن یا متهه(۳) غټ کوتک -

**ډانګه** :- (ډا+نْ+ګَه)، [پ (ب،خ) اس، مؤ، وا، ج: ډانګې] ، پُشته، د کاڼو نه جوړ هغه دیوالګے چې د زمکې د سېلاب نه د بچ کولو د پاره جوړ کړے شوے وي

**ـــ اچول** :- (ب،خ) اص، پُشته جوړول -

**ـــ وړل** :- اص ، (ب،خ) پُشته لاهو کول -

**ډانګی** :- (ډا+نْ+ګ+ی) ، [اَف:پ (قاموس) اص ، مؤ] ، ټانګُو، یو قسم ونه چې لرګے ئې سخت وي -

**ډانګی** :- (ډا+نْ+ګ+ی)، [پ،خ) اس ، مؤ] د یو لوبغاړي د پرې خلق چې په یو ځاے کښې ناست وي -

**په ډانګی ننوتل** :- (ب،خ) اص، (۱) د خپلې پرې خلقو ته ورننوتل.(۲) پره منل -

**ډانګے** :- (ډا+نْ+ګَے)، [پ، (سو) اس ،مذ ،وا، ج: ډانګې] ، وړوکے ډانګ -

**ډانګے** :- (ډا+نْ+ګے)، [پ، اس، مذ، وا، ج: ډانګې]، (۱) وړوکے سوټے. (۲) قدم -

**ډانګے** :- (ډا+نْ+ګَے)، [پ (بنو) اس ، مذ، وا ،ج: ډانګې] ، ډانګیز، په خرپوڅو تلُونکے ماشوم، هغه ماشوم چې په خاپوړوځي -

**ډانګې ډوبل** :- (ډا+نْ+ګې+ډْ+و+بْ+لْ)، [پ (خ) ص] ، چُور چُور، مات -

**ـــ کېدل** :- اص ،چُور چُور کېدل ،ماتېدل -

**ډانګې ډیچې** :- (ډا+نْ+ګې+ډِ+يْ+چې)، [پ، ص ، مؤ ، ج] ،ترېکې، ټوټُونه

**ډانګیي** :- (ډا+نْ+ګ+یيْ)، [اَف:پ (قاموس) اس، ص، مذ، وا، ج: ډانګیان] ، فضول بنیادم، بد معاش -

**ډاول** :- (ډا+و+لْ)، [پ (بنو) ص] ، فېشن، ډول، ځان جوړونه -

**ـــ کول** :- اص، فېشن کول، ډول کول، ځان جوړول -

**ـــ کېدل** :- اص، فېشن کېدل، ډول کېدل -

**ډاوْلي** :- (ډا+و+لِيْ)، [پ (بنو) اس] فېشنې، ډولي -

**ډاوړے** :- (ډا+و+نْ+ړے) [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ] ،داوړ، څادر، پړُونے -

**ډائي** :- (ډا+ئيْ)، [انګ ،اس ، مؤ] ،رنګ -

**ـــ کول** :- اص، رنګ ورکول -

**ـــ کېدل** :- اص ،رنګ کولے کېدل -

**ډائجسټ** :- (ډا+ي+ج+س+ټْ)، [انګ اس مذ وا ج: ډائجسټونه] ،خلاصه د مظمونُونو مجموعه -

**ډائي ډبر** :- (ډا+ئي+ډَ+بَ+رْ)، [پ (ب،خ) ص] ، تباه، برباد -

**ـــ کول** :- (ب،خ) اص ،تباه کول، بربادول -

**ـــ کېدل** :- اص، تباه کېدل، بربادېدل -

**ډائرکټر** :- (ډا+ئي+ر+ک+ټ+رْ) ،انګ ،اس، مذ، وا، ج: ډائرکټران (مؤ، وا: ډائرکټره ،ج: ډائرکټرې)] ناظم، د یوې شعبې مشر افسر -

**ډائرکټري** :- (ډا+ئي+ر+ک+ټ+رِيْ)، انګ، اس، مؤ ،وا، ج: ډائرکټرۍ] ، (۱) ناظم توب ،د ډائرکټري کار.(۲) هغه کتاب چې پکښې د خلقو د ټیلیفونونو نمبرې او پتې لیکلے وي -

**ډائري** :- (ډا+ئي+رِيْ)[انګ اس ، مؤ ،وا ، ج: ډائریانې] (۱) روزنامچه، د یاداشت کتاب، هغه کتاب چې پکښې تاریخونه او ورځې لیکلے وي.

(۲) د څۀ واقعې پټ خبر -

**ډائګرام** :- (ډا+ئي+ګْ+را+مْ)[انګ، اس ،مذ ،وا ،ج: ډائګرامونه] ، خاکه، شکل ، تصویر

**ډائل** :- (ډا+ئي+لْ)، [انګ ، اس، مذ، وا ، ج: ډائلُونه] ، د ګړۍ یا ټیلیفون هغه حصّه چې نمبرې او هندسې پرې لیکلے وي -

**ډائېنامو** :- (ډا+ئي+نا+مو)، [انګ، اس ، مؤ] دانجن هغه حصه چې بجلي پکښې پیدا کېږي او نورو حصو ته ئې ورکوي -

**ډائنامیټ** :- (ډا+ئي+نا+مي+ټْ) ، [انګ ، اس ، مذ] ،بمي کارتوس ،د بارُودو نه جوړ هغه کارتوس چې په خلاصېدلو ډېر زیات نقصان کوي، د بارودو په زور چلېدونکے کارتوس -

**ډائننګ کار** :- (ډا+ئي+ن+نْ+ګ+کا+رْ)، [انګ ، اس ، مذ] ،د رېل ګاډي هغه ډبه چې د خوراک څښاک انتظام پکښې وي او خلق ئې په بیعه اخلي -

**ډائننګ هال** :- (ډا+ئي+ن+نْ+ګْ+ها+لْ)، [انګ ،اس، مذ، وا ،ج: ډائننګ هالُونه] ، د ډوډۍ خوړلو لویه کوټه -

**ډب** :- (ډَ+بْ)، [پ، اس، مذ، وا، ج: ډبُونه] ،(۱) ګزار-

پـه زړۀ مهر په خولۀ قهرزوے ته بویه
څـۀ بنۀ وائي چېرتـه ډب هـلتـه ادب (رحمٰن)

(۲) طریقه، طور -

که مې نۀ شي پرده پوش فضل د رب
وهــــرچـاوتـه ښکاره دے زما ډب (حمید)

(۳) پـه ځـاے ولاړ، معطـل.(۴) لـوئي.(۵) تـاوان .(۶) ول.(۷) ژوره زمکه.(۸) سخته زمکه -

**ډب ـختـل** :- اص (۱) آواز ختـل، د ګـذار آواز راتلـل(۲) نتیجه ظاهرېدل (۳) د لوئی نه پرېوتل -

**ـــ خوړل** :- اص ،(۱) ګذار خوړل.(۲) نرخ پرېوتل.(۳) تاواني کېدل -

**ـــ دربدل** :- اص ،ډب کېدل، اوبۀ جمع کېدل، اوبۀ بندېدل -

**ـــ زغمل** :- اص ،(۱) ګذار زغمل.(۲) نقصان برداشت کول -

**ـــ کېدل** :- اص ،(۱) ـو، ډب دربدل -

سیند د طبعې مې صورت د طوفان جوړ کړي
کلـــه کلـــه چې پــــه ډب د قبـض بنـد شم (حمزه شنواري)

(۲) څۀ څیز نۀ خرڅېدل -

**ـــ نۀ منل** :- اص، حکم نۀ منل، قاعده قانون نۀ منل -

**ـــ ورکول** :- اص، (۱) ګزار ورکول، څپېړه ورکول.(۲) نقصان او تاوان ور سول -

**ـــ وروستل** :- اص، چاته تاوان ور رسول -

**اوبۀ ډب کول** :- اص، اوبۀ یو ځاے کښې جمع کول -

**بې ډبه** :- اص ،بې طریقې، بې سرېتوبه -

**بې ډبه ټیزنۀ اچول** :- اص ،بې د وېنا هیڅ کار نۀ کول -

**بې ډبه کول** :- اص ،بې طریقې کار کول -

**په کار کښې ډب اچول** :- اص ،کارځنډول، کار پوره کولو کښې ډېل کول، په کار کښې خرچ اچول -

**د بل په ډب کښې تلل** :- اص ، د چا بـل چا په ګناه نیولے کېدل، د بـل پـه سر نقصان خوړل، د بل په ټس کښې تلل -

**د ډب مسلمان** :- اص،د یرې مسلمان،هغه څوک چې په خپله خوښی څۀ کار نۀ کوي -

**له ډبه پرېوتل** :- اص ،د لوئی نه پرېوتل، بې وسه کېدل -

**ډب** :- (ډَ+بْ)[پ (صو)، اِس، مذ، وا، د نمونځ کولو یا د منګو کښېښولو ډُونکاچه

**ډب** :- (ډَ+بْ)، [پ (بیټنې) اِس ، مذ]، توره تیارهٔ، تیارهٔ، تروږمی ـ

**ډب** :- (ډَ+بْ)، [پ ، اِس معرفه]، د کرک په ضلع کښې دبارکوخټکو یو کلے ـ

**ډبا** :- (ډ+با) ، [پ ، اِس ، صوا]، ډبهار ـ دډب ډب پرله پسې آواز

ع چې ئې تېره تر فلکه شي ډبا (سکندرخان خټک)

**ډباډائے** :- (ډ+با+ډا+ئے) [پ (ب،خ) ص ، مذ] (۱) کمزورے،مانده ـ(۲) بوډا ، زوړ ـ

**ډباره** :- (ډ+با+رَه)، [پ (ب،خ) بنو)اِس، مؤ، وا ،ج: ډبارې]، (۱) کاڼے ،ډبره، تیږه ـ (۲) کوَړه، یوه توره برګه مرغۍ چې غوښه ئې ډېره خوږه وي، ډېره ـ

**ډبالاے**:- (ډ+با+لا+ے)، [پ (ب،خ) ،اِس، مذ ، وا ، ج: ډبالي]،(۱) دجامو وینځلو سوباړے، سوټے ـ(۲) د نسوارو یا چټنۍ ټکولو لرګے ـ

**ډبالـه** :- (ډ+با+لَه) ، [پ (ب،خ) اِس، مؤ، وا ، ج: ډبالې]، (۱) ډبـل ډوډۍ ـ (۲) غټه ډوډۍ ـ (۳) زیاته، څوچنده ـ

**ډبالے** :-(ډ+با+لےَ) [اف: پ (قاموس) اِس، مذ ، وا ، ج: ډبالي] کندو، ایکونه، کُولاے ، د غنمو او اوربشو د کېښلولو د خاورو نه جوړ کندُو ـ

**ډباوه** :- (ډ+با+وه)، [افَ:پ (قاموس) اِس، مؤ، وا ،ج: ډباوې]، جبه زمکه،هغه زمکه چې اوبهٔ پکښې ډب شوي وي ـ

**ډباوه** :- (ډ+با+وَه)، [اف:پ (قاموس) اِس ، مؤ]، د زمکې د خړوبولو نه پس چې کُومې اوبهٔ په پټي کښې جمع پاتې شي ـ

**ډب بانډه**:-(ډَب+با+نْ+ډَه) [پ ا،س معرفه]، د اشنغر په علاقه کښې یو کلے ـ

**ډبتېر** :- (ډَ+بْ+تې+رْ)، [اَف:پ (قاموس) اِس ، مذ]، لېوهٔ ـ

**ډبډبانے** :-(ډَ+بْ+ډ+با+نے) [اَف:پ (قاموس) اِس ، مذ]،د ماشومانو یوه لوبه ـ

**ډبډ بنے** :- (ډَ+بْ+ډ+ب+نےَ) [اَف:پ (قاموس) اِس، مذ ، مؤ: ډبډبنۍ] فکرمن ، خفه، زهیر ـ

**ډب ډبوُ** :- (ډَ+بْ+ډ+بُوْ) [پ، اِس معرفه]، په باجوړ کښې داوتمان خېلو قبیلې یو کلے

**ډُبډنګ** :- (ډُ+بْ+ډَ+نْ+ګْ)، [اَف:پ (قاموس) ص، مذ ، (مؤ، وا : ډُب ډنګه ،ج: ډُبډنګې]، غټ پټ بې ډوله بنیادم ـ

**ډبډُوب** :- (ډَ+بْ+ډُو+بْ)[پ ، ص ، مذ] (۱) ډز ډُوز، وهل ټکول ـ(۲) بې هوشه، بې خُوده

ـــ **کول**:- اِص، (۱) ډز ډُوز کول، وهل ټکول کول ـ(۲) بې خوده کول ـ

ـــ **کېدل**:-اِص،(۱) وهل ټکول کېدل، ډز ډُوز کېدل ـ(۲) بې خوده کېدل ـ

**ډبډۍ**:- (ډ+ب+ډۍ) [پ (ب،خ) اِس ، مؤ]، امېدوار ه ښځه، په خېټه، په اُمېد

ـــ **کېدل** :- (ب،خ) اِص، په خېټه کېدل، په اُمېد کېدل ـ

**ډبډے** :- (ډَ+ب+دَے) [پ (مر) ص مذ مؤ: ډبډۍ]، (۱) فکر من ـ(۲) بیمار ناجوړه ـ (۳) کمزورے، مانده ـ

**ډبر**:-(ډَ+بَ+رْ) [پ، اِس معرفه]، د شلمان په علاقه کښې د یو غر نُوم ـ

**ډبر**:-(ډ+بَ+رْ) [پ ، ص ، مذ]، تباه، برباد ـ

یو ټبر د خورم څهٔ وو

ډېر عالم ئې کړو ډبر (رحمٰن)

ـــ **کول** :- اِص، تباه کول، ډبره ول، بربادول ـ

ـــ **کېدل** :-اِص، ډبرېدل، تباه کېدل، بربادېدل ـ

د شلمان غُـرونـه پـه دا کله خبر دي

په شلمان کښې چې زرګونه شول ډبر (خوشحال)

**ډبروالے** :- (ډ+بَ+رْ+وا+لے)، [پ ، اِس ، مذ] ،تباهي، بربادي ـ

**ډبروژنه** :- (ډ+بَ+رْ+و+ژ+نه)[پ ، حمص] ،سنګساري، په کاڼو ویشتو ویشتو وژنه ـ

**ډبرول**:-(ډَ+بَ+ر+و+لْ) [پ ، مص مت]، تباه کول، ډبرکول، بربادول ـ

**ډبرونه**:- (ډَ+بَ+ر+و+نه) [پ ، حمص]، تباه کونه، بربادونه ـ

**ډبرووُنکے** :- (ډَ+بَ+ر+وُو+نْ+کےَ)، [پ، فاع، مذ ، وا: ډبرووُنکي، مؤ: ډبرووُنکې]، تباه کووُنکے، بربادووُنکے ـ

**ډبره** :- (ډَ+بَ+ره) [پ ، اِس، مؤ ،وا، ج: ډبرې]، و- ډباره ـ

ـــ **اُوبوتـه اچـول** :- اِص،(۱) کـاڼـے اوبـو تـه ورغورځـول، ډبـره اُوبوتـه غورځـول (۲) څهٔ خبره پټه ساتل، راز راز ساتل ـ

ـــ **اوبوته غورځول** :- اِص ،و- ډبره اُوبوته اچول ـ

ـــ **اوچتول** :- اِص، درُوند کاڼے اُوچتول او د زور مظاهره کول ـ

ـــ **پرایښوول** :- اِص، (۱) کاڼے یا تېږه پرې ایښودل ـ(۲) څهٔ سخا خبره پټول (۳) یوه معامله بېخي هېرول ـ

ـــ **ویشتل** :- اِص، ګوله غورځول ـ

ـــ **غورځول او سر تر لاندې نیول** :-اِص، (۱) هر وخت د جنګ جګړې خبرې کول ـ (۲) د کم عقل توب خبرې کول ـ

**ډبرې اړول لړم تر لاندې غوښتل** :- اِص، جنګ جګړه په زور لټول، په جنګ پسې ګرځېدل ـ

**ډبرې توږل** :- اِص ،سنګ تراشي کول، د کاڼو تراشل ـ

**ډبرې ته سرنیول**:-اِص ،په یوه خبره ډېر زور اچول، په څهٔ خبره ډېر سرخوږل

**ډبرې سره سرجنګول**:- اِص، (۱)د ځان نه زورور سره لاس اچول،(۲) ضد کول

**ډبـره** :- (ډَ+بَ+رَه) [پ ،اِس معرفـه]، د ډېـره اسـماعیل خـان ضـلع د ټانـګ پـه تحصیل کښې د یو کلي نوم ځینې خلق وائي چې د آدم خان درخانۍ یو کردار ترینه د دې کلي وه ـ

**ډبره**:-(ډَ+بَ+رَه) [پ، اِس، مؤ، وا ، ج: ډبرې]، کُوړکبه، ډباره، کوَړه ـ

**ډبرۍ**:-(ډ+ب+رۍ) [اَف:پ (قاموس) اِس ، مؤ]، د مړزانو دنیولو جال ـ

**ډبـرۍ** :- (ډِ+بْ+رَ+ئـۍ)، [پ، اِس، مـؤ ،وا ، ج: ډبریـانې]، د پـېـچ کلکولـو غوټۍ چې اوسپنې نه جوړه وي او رخونه لري ـ

ـــ **ټینګول** :- اِص ،ډبرۍ کس کول، ډبرۍ کلکول ـ

ـــ **سستول** :- اِص، غوټۍ نرمول، د پېچ د خلاصولو د پاره ډبرۍ ډیله کول ـ

ـــ **سستېدل** :- اِص ،(۱) غوټۍ سستېدل، غوټۍ ډیله کېدل ـ (۲) کمزورے کېدل، بې خونده کېدل ـ(۳) غصّه یخېدل ـ

ـــ **کس کول** :- اِص، و - ډبرۍ ټینګول ـ

**ډبرېدل** :-(ډَ+بَ+رې+د+لْ) [پ، مص لا]، تباه کېدل، بربادېدل ـ

**میاشت ډبرېدل** :- اِص، میاشت راښکاره کېدل، میاشت لیدلې کېدل ـ

**ډبرېدنه**:-(ډَ+بَ+رې+د+نه) [پ ، حمص] ،تباه کېدنه، بربادېدنه ـ

**ډبرېـدوُنکے** :-(ډَ+بَ+رې+دُو+نْ+کےَ) [پ، مـف، مـذ ، وا ، ج: ډبرېـدُونکي، مـؤ: ډبرېدُونکې]، تباه کېدُونکے، بربادېدُونکے ـ

**ډبرین** :- (ډَ+بَ+رِي+نْ) [پ، ص، مذ ، (مؤ ،وا: ډبرینه ،ج: ډبرینې]، کاڼېز ـ

**ډبک** :- (ډَ+بَ+کْ) [اَف:پ (قاموس)، اِس، مذ ، وا ، ج: ډبکان]، خوټ بادے، دهرنیا مرض، ډبکے ـ

**ډبـک** :- (ډ+ب+کْ)، [اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـذ]، د اوښ د کتـې روسـتني ولاړ لرګي

**ډب کوټ** :- (ډ+ب+کو+ټْ) [پ، اِس معرفه]، په سوېلي وزیرستان ایجنسۍ کښې د وزیرو د قبیلې یو کلے ـ

**ډبکه**:- (ډَ+بْ+کَه) [پ، اس، مؤ، وا، ج: ډبکې]، ډبه ،اُوچت ځاے۔

**ډبکے** :-(ډَ+بَ+کَے) [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، ډبک، خوټ مادے، هرنیا۔

**ډبګی** :- (ډَ+بْ+ګ+ئی)، [پ اس تصغیر ، مؤ]، وړوکے ډبلے، وړوکې ډبه

**ډبـل**:-(ډَ+بَ+لْ) [پ، اس، مـذ ، (مـؤ، وا: ډبلـه، ج: ډبلې]، (۱) مضـبوط، ټينګ، غټ۔(۲) دوه تهه، برغ، غبرګ، دوه دونه۔

**ـــ کول** :- اص ،دوه دونه کول، دوه چنده کول۔

**ـــ کېدل**:-اص ،دوګونه کېدل، دوه دونه کېدل، دوه چنده کېدل۔

**ډبل** :- (ډَ+بْ+ب+لْ)، [انګ ، اس ، مذ]، منډه، دَو، تړه، زغل۔

**ـــ کېدل**:- اص، ناڅاپي په منډه کېدل، چېرته ډېر تېز ورتلل۔

**په ډبل تلل** :- اص ،چاخ چاخ تلل، په منډه تلل۔

**ورډبـل کـول** :- اص ،(۱)څـوک چېرتـه پـه منـډه استـول۔(۲) څـهٔ ځـاے تـه ورزغلېدل۔

**ډبل ډنګ** :- (ډَبَل+ډَ+نْ+ګْ)، [پ ،اس، ص، مذ]، غټ سړے۔

**ډبـل ډبکـر** :- (ډَبـل+ډې+ک+رْ)، [انګ، اس، مـذ ،وا ،ج: ډبـل ډبکـرې]، (۱)دوه چتېزه لارۍ۔(۲) غټ بنيادم، ډبل ډنګ۔

**ډبـــل روټـــی** :- (ډَبـــل+رو+ټ+ئی) [پ ، اس ، مؤ]، ډبلــه، ډبلــه ډوډۍ، انګرېزي،غټه ډوډۍ

**ډبل مارچ** :- (ډَ+بَ+لْ+ما+رْ+چْ)، [انګ، اس، مؤ، مذ] زغل، ډېرتېز او چاخ تلل۔

**ـــ کول** :- اص ،تېزتېز تلل، چاخ چاخ تلل، په منډه تلل۔

**ډبلل** :- (ډَ+بْ+ل+لْ)، [اَف:پ (قاموس) ص]، په خپلو کښې تعلق پرېکول۔

**ډبلو**:-(ډ+ب+لُوْ)[اف:پ (قاموس) اس ، مذ]، غټ کوتک، غټ لَوړ۔

**ډبلـی** :- (ډَ+بَ+ل+ی) ، [پ ، اس ، مـؤ]، (۱) هغـه غونډ شـان لـرګـے چې ځېزُونه پرې مېده کولے شي، ډبلے۔

کـــه دې غم پـــه ډبلو شو ريز مريز
نهٔ مې صبر شي له ښکليو نهٔ پرهېز (حميد)

(۲) ګـډ ګـډيره ډوډۍ، ګـډه وډه ډوډۍ، د مختلفـو غلـو د يـو ځـاے کړې دُوړې نه پخه کړې ډوډۍ۔(۳) د تاؤ کړې ځادرنـه جوړ کوتـک چه ماشومان ئې په لوبه کښې پکار راولي۔

**تېزپه ډبلی نهٔ ماتېدل** :- اص، ډېر مغروُره کېدل، بې کچه زيـات کبـرجن کېدل۔

**يو ډبلی کېدل** :-اص ،چاته پـه يو ځاے کېدل، د چا خلاف پره يـوه کـول، شريک محاذ جوړول۔

**ډبل** :- (ډَ+بْ+لَے) [پ، اس ،مذ، وا، ج: ډبلي، ډبليان]، (۱) و- ډبلی۔(۲) غټ ماشُوم

**ډبلے**:-(ډَ+بْ+لَے) [پ، اس، مذ، وا ،ج: ډبلي]، دبلے، د نسوارو ډبے۔

**ډبليئي** :- (ډ+بَ+لي+ئي)، [پ (بنو) اس ، مؤ]، ډبالاے ، سوبارے، سوتړے

**ډبـن** :- (ډ+ب+نْ)، [اَف:پ (قـاموس) اس، مـذ، وا، ج: ډبني (مـؤ ،وا: ډينـه ،ج: ډبنې]، کندو، کنده، ژور ځاے۔

**ډُبو**:-(ډ+بُوْ)، [پ ، ص]، ځورب، پرسېدلے، غټ، ډبُوس، تمبُوس۔

**ډب وآخ** :- (ډَ+بْ+و+آ+خْ)، [اف:پ(قـاموس) اس ، مـذ]، آخ او ډب، د دوؤ يا زياتو کسانو د يو بل وهل ډبول۔

**ډب و ډُوب** :- (ډَ+بْ+و+ډُوْ+بْ)، [پ ، ص ، مذ]، سُوک څپېړه، وهل ټکول۔

**ـــ اچول** :- اص ، سُوک څپېړه کول، وهل ټکول کول۔

**ډبـوزه** :- (ډ+بُـوْ+زَه)، [پ (ب،خ) اس ،مـؤ ،وا ،ج: ډبـوزې]، (۱) پـوکنۍ۔(۲) يوه لوبه

**ډبوس** :- (ډ+بُوْ+سْ)، [پ، ص، مذ ، (مؤ، وا: ډبوسه ،ج: ډبُوسې]، و- ډبُو

**ـــ کېدل** :- اص، غټېدل، پړسېدل۔

**ډبـوس** :- (ډَ+بُـوْ+سْ)، [پ (بنـو) اس، مـذ ، (مـؤ، وا: ډبُوسـه، ج: ډبُوسې]، (۱) ناروغه، غټ بنيادم۔(۲) بې فائدې بنيادم۔

**ډبول** :- (ډَ+ب+و+لْ)، [پ ، مص مت]، وهل ټکول۔

**ډبولے** :- (ډَ+ب+و+لے) ،[پ، مف، مذ، وا، ج: ډبولي ،مؤ: ډبولې]، وهلے ټکولے۔

**ډبونګ** :- (ډَ+ب+و+نْ+ګْ)، [اَف:پ (قاموس) حمص]، ډبونه، وهنه، ټکونه

**ډبونه** :- (ډَ+ب+و+نَه)، [پ ، حمص]، و-ډبونګ۔

**ډبووُنکے** :- (ډَ+ب+وُوْ+نْ+کے)، [پ فـاع، مـذ ، وا، ج: ډبـووُنکي ،مـؤ: ډبووُنکې]، وهُونکے ټکووُنکے۔

**ډبه** :- (ډَ+بْ+بَه)، [پ (ب،خ) اس ،مؤ]، شګه۔

**ډبه** :- (ډَ+بـه)، [پ، اس، مؤ، وا ،ج: ډبې]، (۱) ډبکه، اوچت پـاے ، خټ ،هغـه ځـاے چې خلق پرې کښـېني۔(۱) څلور مخـے چارسُو۔(۳) د تېلو توره ډبه۔

**په ډبه کښېناستل** :- اص ،ځان ډډې ته کول۔

**ډبه** :- (ډَ+بَه) ، [پ ، اس ، مؤ]، دمه،د د مې بيماري۔

**ډبه** :- (ډَ+بَه)، [پ ، اس، مؤ ،وا ،ج: ډبې]، لوے بس۔

**ډبهار**:- (ډَ+ب+ها+رْ) ، [پ، اس، صو، مذ]، ډبا، ډبهارے، ډبار۔

**ډبهارے** :- (ډَ+ب+ها+ر+رَے)، [پ، اس، مؤ، مذ]، و- ډبهار۔

**ډبـی** :- (ډَ+بَ+ی) [پ ، اس ، مـؤ]، (۱) سـوبارے، کوتـک، سـوتړے، لـوړ۔ (۲) د تيلو دبلے۔(۳) د رېل ګاډې کوټه۔

**ـــ وهل** :- اص، ټکرې وهل، په منزل کښې روستو پاتې کېدل۔

**ډبی** :- (ډ+ب+ی)، [اف:پ(قاموس) اس، مؤ]، ريندے۔

**ډبے** :-(ډَ+بے) ، [پ ، اس ، مذ]، د نسوارو يا تيلو دبلے۔

**ډبي اوبهٔ** :- (ډَ+بي+اُو+به)، [پ ، اس، ص، مؤ]، ولاړې اوبهٔ،ډنډ اوبهٔ۔

**ډبيـالے** :- (ډَ+بْ+يـا+لے)، [اف:پ (قـاموس ،اس ،مـذ، وا، ج: ډبيـالي، مـؤ: ډبيالۍ]، په ادب، ادبناک، تابعدار۔

**ډبېدل** :- (ډَ+بې+د+لْ)، [پ ، مص لا]، وهلے کېدل، ټکولے کېدل۔

**ډبېدلے** :- (ډَ+بې+د+لے)، [پ، مف، مذ، وا، ج: ډبېدلي، مؤ: ډبېدلې]، وهلے شوے، ټکولے شوے۔

**ډبېـدنګ** :- (ډَ+بـې+د+نْ+ګْ)[اَف:پ (قـاموس) حمـص]، ډبېدنـه، ډبېـدهٔ، وهنه ټکونه

**ډبېدنه** :- (ډَ+بې+د+نه)، [پ ، حمص]، و- ډبېدنګ۔

**ډبېـــدُونکے** :-(ډَ+بـې+دُوْ+نْ+کَے) [پ، مـف، مـذ، وا، ج: ډبېـدُونکي، مـؤ: ډبېدُونکې]، وهلے کېدُونکے، ټکولے کېدُونکے۔

**ډبېدهٔ** :- (ډَ+بې+ده،)، [پ ، حمص]، و - ډبېدنګ۔

**ډبيزه** :- (ډَ+بْ+ي+زَه)، [پ (بنو) اس ، ص ، مؤ]، غټ کوتک۔

**ډبيـــــزن** :- (ډَ+بـــي+زَ+نْ)، [پ (عـــا) انـــګ: ډويـــژن اس ،مـــذ ،وا، ج: ډبيزنُونه]،ډويژن، درې بريګېډه فوځ۔

**ډپ** :- (ډَ+پْ)، [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـذ]، (۱) ډب ولاړې اوبـهٔ، ډنـډ اوبـهٔ۔(۲) تاوان، نقصان۔(۳) غرور، ويار، کلان کارې، لوئي۔

**ـــ وررسول** :- اص، چاته نقصان ور رَسول۔

**په ډپ کښې کېدل** :- اص ،لوئي کول، کبرژن کېدل۔

**ډپ** :- (ډ+پْ)، [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـذ]، (۱) د کلـي د سـبل ورکـوتړے غونډۍ۔(۲) د خاور ورکوتړے ډېرے، ډېه۔

**ډپارټمنـــټ** :- (ډ+پـا+رْ+ټْ+م+نْ+ټْ) [انـګ، اس، مـذ، وا، ج: ډپارټمنټونـه]

،محکمه، شعبه
**ډپارټمنټل** :- (ډ+پا+رْ+ټْ+مِ+نْ+ټَ+لْ)، [انګ ، ص]، محکمانه، د محکمې، د شعبې، د ادارې له طرفه۔
**ډپازټ** :- (ډ+پا+ز+ټْ)، [انګ ، اس ، مذ]، جمع، امانت۔
**ډپټي**:- (ډ+پْ+ټِيْ) [انګ، اس ،مذ ،وا ، ج: ډپټیان]، (۱) نائب، په دویم نمبر۔ (۲) مجسټریټ۔
**ډپټي**:-(ډ+پْ+ټِيْ) [پ (عا) اس، انګ ، ډیوټي]، ډیوټي،فرض،کار ،نوکري۔
**ډپټي ډائرکټر** :-(ډپټي+ډا+ئي+ر+کْ+ټَ+رْ) [انګ ، اس، ص ، مذ]، نائب ناظم په ډائریکټر پسې اهلکار۔
**ډپټــي رجسـټرار**:-(ډپټــي+رَ+ج+ف+س+ټْ+را+رْ) [انـګ، اس، ص ، مـذ]، د رجسټرار نائب۔
**ډپټــي سُـــپرډنټ** :- (ډپټـــي+س+ُپ+ر+ډَ+ن+ټْ)، [پ ،انـګ ، اس ، ص ، مذ]، نائب سُپرډنټ، نائب مهتمم، د کار نائب سربراه۔
**ډپټي سپیکر** :- (ډپټي +س+ْپِيْ+کَ+رْ)، [انګ ، اس ، ص ، مذ]، د اسمبلۍ نائب صدر
**ډپټــي ســکرټري**:-(ډپټــي +س+َک+ْر+ِټ+ْري)، [انـګ ، اس ، ص]، نائـب سکټر۔
**ډپټي کلکټر**:-(ډپټي+کَ+ل+کْ+ټَ+رْ)، [انګ ، اس ، ص ، مذ]، (۱) د کلکټر نائب، افسرمال۔(۲) د کسټم د محکمې یو عهده دار۔
**ډپټــي کمشـنر**:- (ډپټـي+کَ+مِ+شْ+نَ+رْ) [انـګ ، اس ، ص ، مـذ]، د ضـلعې لوے حاکم۔
**ډپټــي کنټرولــر** :- (ډپټــي+کَ+نْ+ټْ+رو+لْ+رْ)، [انـګ ، اس، ص ، مـذ]،د کنټرولر نائب
**ډپلومه** :- (ډ+پْ+لو+مَه)، [انګ، اس ،مؤ ،وا ، ج: ډپلومې]، ډپلومه، سند۔
**ډپلومــه هولـډر**:- (ډپلومــه+هو+لْ+ډَ+رْ)، [انګ،اس ص،مذ]،هغـه څـوک چې د لیاقت سند ورڅخه وي۔
**ډپلومېټ**:(ډ+پْ+لو+مېَ+ټْ)[انګ،اس،مذ ،(مؤ،وا: ډپلومېټه،ج:ډپلومېټې] ، پالېسي باز،چل باز، د سیاست په چل پوهه،د وزارت خارجه افسر۔
**ډپلومېټـک**:- (ډ+پْ+لـو+مېَ+ټِ+کْ)، [انګ،ص]، د پالېسـي، د اټې سټې،د سیاسي چل بازۍ خبر۔
**ډپلومېسي**:- (ډ+پْ+لو+مې+سيْ)، [انګ،اس،مؤ]، سیاسي پالېسي،اَټه سټه، پالېسي بازي،چل ول۔

کـه د بـاطل ډپلومېسي منافقت ته وائي
منافقت خو په مذهب د مسلمان ګناه وي (پریشان خټک)

**ډپنې**:- (ډ+پ+نْ+ِر+ی)، [پ(بنو)اس،مؤ]، ډډوونے،پُوکنې۔
**ډپو**:- (ډ+پْ+پوُ)، [انګ،اس،مذ ،وا ،ج: ډپوان،ډپوګان]، ګودام،ذخره۔
**ډپوټېشن**:- (ډ+پُو+ټې+شَ+نْ)، [انګ،اس،مذ]، (۱)وفد ،ټولے،جرګه،(۲)د یو عهدېدار د څهٔ مودې د پاره د خپلې محکمې نه بلې محکمې ته تګ۔
**ډپو هولډر** :- (ډپو+هو+لْ+ډَ+رْ)، [انګ ، اس ص ، مذ]، ډپولډر، د ډپو مالـک، هغـه څـوک چې حکومت د سرکاري څیزونـو پـه مقـرر نـرخ د خرڅولـو اجازه ورکړي وي
**ډپـه** :- (ډ+پـه)، [اَف،پ (قـاموس) اس، مؤ، وا ، ج: ډپې]، ډپ، اوچت ځـا ے ، ډُونکاچه۔
**ډت** :- (ډ+تْ)، [پ ، اس ، مذ]، (۱) د ډنډت یا ډغ اَواز چې د مالُوچو وهلو په وخـت تـر ې راوځـي ۔(۲) هغــه بـارچې د شـانه خـلاص شـي او پربوځي۔(۳) اَس، دوبلن
**ډتا** :- (ډ+تا) [پ، اس، مؤ]، (۱) عبث خبرې۔(۱) د پرله پسې تیزُونو اَواز، ډتهار

ـــ **ختل**:-اص ،د ډت ډت اَواز راتلل، پرله پسې د تیزُونو اَواز راتلل۔
**ډتـــان** :- (ډ+تـا+نْ)، [پ (ب،خ+بنـو) اس ،ص، مـذ ، (مـؤ، وا: ډتنــه ،ج: ډتنې]، ډتن، خوشاټارے، تیزن، عبث خبرې کوونکے۔
**ډتن**:-(ډ+ت+نْ)، [پ، ص، مذ ، (مؤ ،وا: ډتنه، ج: ډتنې]، و- ډتان۔
**ډتُو** :- (ډ+تْ+تُوْ) [پ (ب،خ) اس ، مذ]، (۱) یو توره مرغۍ چې لاندې لکۍ ئې سپینه وي۔(۲) په لوبه کښې د غوزانو راټولوونکے هلک۔
**ډتـول** :- (ډ+ت+و+لْ)، [پ ، مـص مـت]، (۱) اَس پـه ورکـوټي او نـا اَوار قـدم پرېښول۔(۲) په چا عبث خبرې کول ،څوک خوشے غږول، په چا مزې اخستل (۳) غوول، شرمول۔
**ډتولے** :- (ډ+ت+وَ+لے) ، [پ، مف، مذ ، وا ، ج: ډتولي ،مؤ: ډتولې]، (۱) اَس په ورکوټي او نا اوار قدم پرېښولے۔(۲) څوک خوشے غږولے۔(۳) غوولے، شرمولے۔
**ډتووُنکــے** :- (ډ+ت+وُ+ْن+کَــے)، [پ، فـا ، مـذ ، وا ، ج: ډتــوونُکي، مــؤ: ډتــوونُکې](۱) څـوک خوشـے غـږوُونکے، پـه چـا مـزې اخسـتُونکے۔(۲) غوووُنکے، شرمووُنکے
**ډتهار** :-(ډ+ت+ها+رْ)، [پ ، اس ، مذ]،و-ډتا۔
**ډتې** :- (ډ+تې) [پ ، اس، ج ، مؤ]،(۱) ډرتې ،عبث خبرې، ډُوزې۔(۲) د چرګ یا چرګې په خاورو کښې لُوغړېدل۔(۳) د خرهٔ لتې۔
ـــ **وهل**:- اص ،(۱) ډُوزې ویشتل، عبث غږېدل۔(۲) د خرهٔ لتې وهل۔
**ډتے** :- (ډ+تَـ) ، [پ، ص، مذ ، وا ، ج: ډتیان ،مؤ: ډتۍ]، ډتن، سپک خُولے، سپک خُلے ، عبث غږېدوُنکے۔
**ډتېدل**:-(ډ+تې+د+لْ) [پ ، مص لا]، (۱) د اَس په ورکوټي او نا اوار قدم تلل، د اَس ډک ډک وهل۔(۲) عبث غږېدل، سپکې خبرې کول۔
**ډتېــدلے** :- (ډ+تـې+د+لَے) ، [پ، مـف، مـذ ، وا ، ج: ډتېـدلي، مـؤ: ډتېـدلې]، (۱) اَس پـه ورکـوټي او نـا اوار قـدم تللے، د اَس ډک ډک وهلے۔ (۲) عبث غږېدلے۔
**ډتېدنه** :- (ډ+تې+د+نَه)، [پ ، حمص]، (۱) ډتېدهٔ، د اَس ډک ډک وهنـه ،د اَس په ورکوټي او نا اَوار قدم تلنه۔(۲) عبث غږېدنه۔
**ډتېــدوُنکے** :- (ډ+تــې+دُو+ْن+کےَ)، [پ، فــا ع، مــذ ، وا ،ج: ډتېـدوُنکي، مـؤ: ډتېدوُنکې]، (۱) اَس ډک ډک وهُونکے۔(۲) عبث غږېدوُنکے۔
**ډتېدهٔ** :- (ډ+تې+ده)، [پ ، حمص]، و - ډتېدنه۔
**ډچ** :- (ډَ+چْ)، [انګ ، ص ، مذ]، د هالېنډ اوسېدُونکے۔
**ډچکــه** :- (ډ+چ+کــه)، [پ، اس، مــؤ، وا ، ج: ډچکــې]،(۱) دیکــه، ټېلــه۔ (۲) تاخـت، منـډه۔ (۳) دبدبـه، شـان۔(۴) یـو قسـم مرغـۍ۔(۵) جنـګ جګړه، توري ترخې خبرې۔
ـــ **جوړول** :- اص، جنګ جګړه جوړول، خبرې تودول۔
**په ډچکو اچول** :- اص ،زغلول، په منډه اکستل، ورره کول۔
**په ډچکو کښې کېدل**:-اص ،غرور او لوئي کول، دبدبه زیاتېدل۔
**ډچکې خوړل** :- اص، دیکې خوړل، جُوتې وهل، په ټوپونو د اَس تلل ،په تا خت تلل، ډچکې وهل۔
**ډچکې وهل** :- اص ،و - ډچکے خوړل۔
**ډچول**:- (ډ+چ+و+لْ) [پ ، مص مت]، اَس په ترپکو او ټوپُونو زغلول۔
**ډچولے** :- (ډ+چ+و+لَـے)، [پ، مف، مذ ، وا ، ج: دچولي ،مؤ: ډچولې]،اَس پـه ترپکو او ټوپُونو زغلولے۔
**ډچونه**:-(ډ+چ+و+نَه) ، [پ ، حمص]، اَس په ترپکو او ټوپُونو زغلونه۔
**ډچووُنکــے** :- (ډ+چ+وُو+ْن+کَــے)، [پ، فــا ع، مــذ ، وا ، ج: ډچــووُنکي مــؤ: ډچووُنکې]، اَس په ترپکو او ټوپونو زغلووُنکے۔

**ډچه** :- (ډ+چه)، [پ، اس، مؤ، وا، ج: ډچې]، (۱) دبدبه.(۲) زغل، تاخت، منډه. (۳) رپندے، رپرپے.

**ډډ** :- (ډَ+ډْ) [پ، ص، مذ، (مؤ، وا: ډډه، ج: ډډې]، (۱) پرسېدلے.(۲) زيات غټ (۳) خفه، ناراضه.(۴) تش ګوګ چې مېنځ ئې خالي وي.(۵) ناست اواز (۲) وبخ تل.

**ــــ ته رسېدل**: اص، د خبرې تل ته رسېدل، د خبرې په اصليت پوهېدل.

**ډډګرځېدل** :- اص، خفه ګرځېدل، ناراضه او پرسېدلے ګرځېدل.

**ــــ معلومول** :- اص، د څۀ خبرې حقيقت معلُومول.

**آواز ډډېدل** :- اص، (۱) اواز کښېناستل، اواز غټېدل.(۲) ځوانېدل، شُونډه شنه کېدل، ځوانئ ته رسېدل.

**ډډاره** :- (ډ+ډا+رَه)، [پ (بنو) اس، مؤ، وا]، سينه، ټټر.

**ډډام** :- (ډ+ډا+مْ)[پ(ب، خ) اس، مذ]، ډډم، يو شين بُوټے چې د غنمو په فصل کښې راځېږي.

**ډډبه** :- (ډَ+ډْ+بَ+ډْ)، [پ، ص، مذ (مؤ وا: ډډه بډه، ج: ډډې بډې]، (۱) ډېر پرسېدلے.

مچو زلفو مې ډډبډ کړو په چيچل زړۀ (علي خان)

(۲) خفه، ناراضه.

**ــــ اچول** :- اص، مړ کول.

**ــــ کښېناستل** :- اص(۱) خفه کښېناستل(۲) چپ کښېناستل، بُوټ سوټ کښېناستل

**ــــ کول** :- اص، زيات وهل ټکول.

**ــــ کېدل** :- اص، ډېر زيات پرسېدل.

**ډډبېکے** :- (ډَ+ډْ+بې+کَے)، [اَف:پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: ډډبېکي] (۱) تورسپين، د غوږ او تندي تر مينځ ژور ځاے لوېرنده، تندرکے، اجلځې(۲) يو قسم سبزي.

**ډډتوب** :- (ډَ+ډْ+تو+بْ)، [پ، اس، مذ]، (۱) پرسوب، ډډوالے.(۲) خفګان، ناراضګي، ډډتيا.

**ډډتيا** :- (ډَ+ډْ+تْ+يا)، [پ، اس، مؤ]، (۱) کاواکے، اَلوتے.(۲) ګوګ والے. (۳) خفګان، ناراضګي.

**ډډزنے**:-(ډَ+ډْ+زْ+نَے) [اَف:پ (قاموس) اس، مذ]، و- ډډبېکے(۱).

**ډډګي** :- (ډَ+ډْ+ګ+ئي)، [اَف:پ (قاموس) اس، مؤ]، راشبېل، پلن سرے، خوئې

**ډډم** :- (ډ+ډَ+مْ)، [پ، اس، مذ]، و- ډډام.

**ډډنګے** :- (ډ+ډ+نْ+ګَے)، [اَف:پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: ډډنګي]، د زنې اډُوکے.

**ډډنه** :- (ډ+ډ+نه)، [اَف:پ (قاموس) اس، مؤ]، تلاشي، لټون.

**ــــ کول** :- (اَف) اص، تلاشي کول، لټول.

**ډډو** :- (ډَ+ډُو)، [پ (بنو) ص]، ډډبډ، پرسېدلے، ډېر غټ.

**ډډو** :- (ډ+ډُوْ)، [اَف:پ (قاموس) اس، مذ]، (۱) چيلم.(۲) آواره بنيادم، خوشاټارے.

**ډډوالے** :- (ډَ+ډْ+وا+لَے)، [پ، اس، مذ]، پرسوب.

**ډډور** :- (ډَ+ډ+و+رْ)، [اَف:پ (قاموس) ص، مذ، (مؤ، وا: ډډوره، ج: ډډورې]، کړې خبرې، چينجنې خبرې.

**ډډُوزه** :- (ډَ+ډُو+زه)، [پ، ص، مؤ، وا، ج: ډډوزې]، (۱) تېز بُوئي، سکابُوئي (۲) د ټوپک د دارو يا د لُوګي بوئي (۳) لُوخړه، لوګے.

خبردار به شي عالَم زما له درده
که د اه په اور ډډوزې پېښور کړم (خوشحال)

**ــــ اُوچتېدل** :- اص، (۱) لوګے اُوچتېدل، لوګے پورته ختل.(۲) ډېر سکا بوئي راتلل، ډډُوزه ختل.

**ــــ ختل** :- اص، و- ډډوزه اُچتېدل.

اُور د خوږ وزړو دے چې د غرۀ په ونو بل شو
سرې ډډُوزې خېژي لـــه نبتره لـــه چناره (خوشحال)

**ــــ کول** :- اص، (۱) سخا بوئي کول.(۲) لوګے اوچتول.

**په ډډُوزو اوړېدل** :- اص، په څۀ سخا څيز اوړېدل، درنګه مخې ته راتلل.

**په ډډُوزه تلل** :- اص، ډېر تېز تلل، د څۀ ځايه پښې ويستل.

**ډډوزې اچتول** :- اص، شنې لُوخړې ختل.

**ډډوزې تلل** :- اص، سخا بوئي تلل، ډډُوزې ختل.

**ډډُوزې ختل** :- اص، و- ډ دوُزې تلل.

**شنۀ ډډُوزه** :- اص، وريت پريت، سوے لوے، شنۀ لوخړه.

چې شنې شونډې سبز خط ئې راپه زړۀ شي
سر تـــر پـــايـــه ســره لمبه شم شنۀ ډډُوزه (علي خان)

**ډډوښے** :- (ډَ+ډْ+وشےَ يا خے)، [اَف:پ (قاموس) اس، مذ، وا، ج: ډډوښې]، د زنانوؤ بنګړے.

**ډډول** :- (ډَ+ډ+و+لْ)، [پ، مص مت]، (۱) پړسول.(۲) خفه کول.(۳) بې لارې کول.(۴) په اُمېد کول، بلاربول.

**ډډُون**:-(ډَ+ډُو+نْ) [پ، اس، مذ]، (۱) تلاش، لټُون.(۲) خفه، دلګير.

زما زړۀ هسې محزون دے ستا په غم
درست پاره پاره ډډُون دے ستا په غم (اخون ګدا)

(۳) ګوګ، ډډتيا.

**ــــ کول** :- اص، (۱) لټون، تلاش کول.(۲) پړسېدل.

**ــــ وهل** :- اص، په چا پسې لټون کول، د چا کمزورې معلومول.

**ډډونګ** :- (ډَ+ډ+وَ+نْ+ګْ)، [اَف:پ (قاموس) حمص]، (۱) ډډونه، پړسونه. (۲) په اُمېد کول، بلاربول.(۳) مېنځ خالي کول.

**ډډونه** :- (ډَ+ډ+و+نَه)، [پ، حمص]، و- ډډونګ.

**ډډُونګے** :- (ډَ+ډ+وُو+نْ+ګَے) [پ، فاع، مذ، وا، ج: ډډوُونکي، مؤ: ډډوُونکې]، (۱) پړسـوُونکے.(۲) پـه اُمېـد کوُونکے، بلاربـوونکے.(۳) مېنځ خـالي کوُونکے.

**ډډُوُنے** :- (ډ+ډَ+وُو+نے)، [پ (مر) اس مذ وا ج: ډډوُونې]، پوکنې، ډېنې.

**ډډه** :-(ډ+ډَه) [اَف:پ (قاموس) اس، مؤ، وا، ج: ډډې]، لُوټه، د چليم ګيتې.

**ډډه**:- (ډَ+ډه) [پ، اس، مؤ، وا، ج: ډډې]، (۱) اړخ.(۲) غاړه طرف.(۳) بلاربه، په اُمېد.(۴) پړسېدلې.

**ــــ اچول**:- اص، اړخ لګول، تکيه لګول، څملاستل، ډډه لګول، ارام کول.

**ــــ بدلول** :- اص، اړخ بدلول، په بل اړخ کېدل.

**ــــ کول**: اص، ځان ژغورل، ځان ډډې ته کول، د څۀ معاملې نه يو طرف ته کېدل

نور بـــه له داسې خلقو ډډه کوم
د سپينوتورو په عزت مې قسم (پريشان خټک)

**ــــ لګول** :- اص، و- ډډه اچول.

**ــــ لګېدل** :- اص، (۱) اړخ لګېدل (۲) خاطر جمع کېدل، خوشحاله کېدل.(۳) يو ځاے يا کار خوښېدل.

**ــــ نۀ لګېدل** :- اص، (۱) کارته زړۀ نۀ کېدل.(۲) په يو ځاے کښې خوشحاله نۀ پاتې کېدل

واه هغه سترګې چې زما د سترګو خوب ئې يوړو
څۀ شولې ډډې مې پـه خوا کښې د خيبرنۀ لګي (پريشان خټک)

**ــــ ورکول** :- اص، (۱) څۀ څيز تکيه کېدل.(۲) کارته ورلاتد بوتل.

**په ډډه تلل**:۔اص، (۱) په ځنګ تېرېدل، يو طرف ته تلل، په چا غم غرض نهٔ کول۔

**په ډډه کتل**:۔اص، په ځنګ کتل، په ترڅ کتل۔

داسې په شرم پــه حيـا راتــه پــه ډډه ګوري
لکه چې ببرته ددښمن نه څوک په ماتې راځي (پرېشان خټک)

**په ډډه کول**:۔اص ،يو طرف کول، يو ځاے نه لرې کول۔

**په ډډه کېدل**:۔اص ،يو طرف ته کېدل، ځان غړول۔

**په ډډه لګېدل**:۔اص ،په اړخ لګېدل، په يو طرف راپرېوتل۔

**ډډې په ډډې اړول**:۔اص ،څوک ښهٔ وهل ټکول۔

**ډډې په ډډې اوړېدل**:۔اص ،بې قـلاره کېـدل، اٰرام نهٔ ورتلل، خوب نهٔ ورتلل، دغصّې له کبله بې اٰرامه کېدل۔

**ډډې ته کېدل**:۔اص ،يو اړخ ته کېدل، ځان بچ کول۔

**ډډې خاربښتېدل**:۔اص ،څهٔ څيز تـه شوق پيدا کېـدل، د څهٔ څيز خواهش پـه زړهٔ کښې راتلل

**ډډې مړل**:۔اص ،ځان مښل، د چا سره خپل اړخ لګول، څوک چېړل۔

**ډډې**:۔(ډَ+ډِې) ، [اَف: (قاموس) اس ، مؤ]، ددارو مړدکوبه۔

**ډډے**:۔(ډَ+ډَ ے)، [اَف:پ (قـاموس) اس، مـذ، وا، ج: ډډي] ،(۱) بالښـت، تکيه۔(۲) د مرسخي يـاد کتيې څرمن چې د بُوسونه ئې ډکه کړي او د لوشلو په وخت ئې مور دوړاندې کېږدي۔

**ډډے بډے**:۔(ډَ+ډَ ے+ب+ډَ ے)، [اَف:پ (قاموس) ص ،مذ ،مؤ: ډډۍ بډۍ) ډېر پړسېدلے، ډډُو، ډډبډ، غټ پټ۔

**ـــ ډربدل**:۔اَف) اص، ډېر پړسېدل، ډېر غټېدل۔

**ډډېدل**:۔(ډَ+ډې+د+ل)، [پ ، مص لا] ،(۱) پړسـېدل۔(۲) اٰواز کښېناسـتل۔(۳) د مېـنځ نـه تښتـېدل۔(۴) اُمېد پيدا کېـدل ،پـه خېټـه کېـدل۔(۵) پـه خېټـه کښې بـاد جمع کېدل۔(۲) څهٔ ځناور د شنو وښو د خوړلو نـه پس تمبه کېدل۔

**ډډېـدنګ**:۔(ډَ+ډې+دَ+نْ+ګْ) [اَف:پ (قـاموس) حمـص] ،(۱) ډډېدنـه، ډډېـدهٔ ،پړسېدنه۔ (۲) اٰواز کښېناسـته۔(۳) مېـنځ نـه تښـېدنه۔(۴) پـه خېټـه کېدنه۔(۵) خېټه کښې باد جمع کېدنه۔(۲) د ځناور شنو وښوخوړلو نه پس تمبه کېدنه۔

**ډډېدنه**:۔(ډَ+ډې+د+نهَ) ،[پ ، حمص] ، و ۔ډډېدنګ۔

**ډډېـدوُنکے**:۔(ډَ+ډې+دُو+نْ+کَـے)، [پ، مـف، مـذ، وا، ج: ډډېـدُنکي ،مـؤ: ډډېدُونکې] ، (۱) پړسېدوُنکے۔(۲) اٰواز کښېناستُونکے۔(۳) د مېنځ نه تښېدونکے۔(۴) په خېټه کښې بـاد جمع کېـدوُنکے۔(۵) څنهٔ ځناور تمبه کېدُونکے۔

**ډډېدهٔ**:۔(ډَ+ډې+ده) ، [پ، حمص] ، و ۔ډډېدنګ۔

**ډډلي**:۔(ډ+ډ+لِيْ)، [اَف:پ (قاموس) اس، ص، مذ] ، چالاک او مکّار بنيادم۔

**ډر**:۔(ډ+رْ)[پ، اس، مـذ، (مـؤ ،وا: ډره ،ج: ډرې] ،(۱) د تيـز اٰواز۔(۲) خېټـه، ګېډه، نس

وړې سترګې کلــــه نــــهٔ دي مـړې شوې
ډردې ډک کړو د ژوندون نه نور څهٔ غواړې (صادق الله اورکزے)

(۳) فضول بنيادم، خوشا ټارے۔

**ډراړ**:۔(ډ+را+ډ+رْ)، [اَف:پ (قاموس) اس، مذ] ، يو قسم مرغۍ۔

**ډرافټ**:۔(ډ+را+فْ+ټْ) ، [انګ، اس، مـذ ، وا ، ج: ډرافتُونـه] ،(۱) مسـوده ،د خط کچه مظمون۔(۲) د ښېنک په ذريعه د پېسو ټکو د لېږلو کاغذ۔(۳) د فوځ چېرته د لېږلو د پاره تياره دسته۔

**ـــ تيارول**:۔اص،(۱) د ښېنک په ذريعه د پېسو لېږلو کاغذ جوړول۔(۲) دفوځ دسته د تللو د پـاره تيـارول۔(۳) د خـط کچـه مظمـون ليکـل، ډرافټ ليکل، ډرافټ جوړول۔

**ـــ تيارېدل**:۔اص،(۱) د ښېنک پـه ذريعـه د پېسو لېږلو کاغذ جوړېدل۔(۲) د فوځ دسته د تللو د پاره تيارېدل۔(۳) د خط کچه مظمون ليکلے کېدل

**ـــ جوړول**:۔اص ،و ۔ ډرافټ تيارول(۱ ، ۳)

**ـــ ليکل**:۔اص ،و۔ډرافټ تيارول (۳ ،۱)

**ـــ وصولول**:۔اص ،د ښېنک په زريعه رالېږلې پېسې تر لاسه کول۔

**ډرافټسـمېن**:۔(ډْ+را+فْ+ټْ+سْ+مَ+ې+نْ)، [انـګ، اس، مــذ وا ، ج: ډرافټسمېنان (مؤ، وا: ډرافټسمېنه ،ج: ډرافټسمېنې)] ،نقشه نويس ،نقشې او خاکې جوړووُنکے

**ډرافټسـمېني**:۔(ډْ+را+فْ+ټْ+سْ+مې+نـيْ)، [پ ،اس، مـؤ] ، نقشـه نويسـي، نقشې او خاکې جوړولو کار۔

**ډرامائي**:۔(ډ+را+ما+ئيْ) [پ ، تر ، ص] ، د ډرامې غوندې، عجيبه شان، ناڅاپي

**ډرامه**:۔(ډْ+را+مهَ) [اَنګ، اس، مؤ ،وا ،ج: ډرامې] ، ناټک، تماشه، نقل۔

**ـــ جوړول**:۔اص ،(۱) ټوټې جوړول۔(۲) ډېر خلق يو ځاے کېدل۔

**ـــ کول**:۔اص، (۱) ناټک يا تماشه کول۔(۲) د دروغو يا د ګپ خبره جوړول۔

**ـــ کېدل**:اص، (۱) تماشه کېدل، ناټک کېدل۔(۲) څهٔ ټوقه جوړېدل۔

**ـــ کتل**:۔اص (۱) ډرامـه ليـدل، تماشـه يـا ناټـک کتـل۔(۲) څهٔ عجيبـه خبـره پـه نظر راتلل

**ـــ ليدل**:۔اص ،و ۔ ډرامه کتل۔

**ـــ ليکل**:اص، څهٔ قيصه يا افسانه د ډرامې په شکل کښې ليکل۔

**ډران**:۔(ډ+را+نْ)، [اف:پ (قاموس) اس، مذ] ، مکروه اٰواز، د مست غوايـانو په شان د ډرکېدو اٰواز۔

**ډرائي کلين**:۔(ډْ+را+ئيْ+کْ+لِيْ+ن)[اَنګ ، اس ، مذ]بغېر د وينځلو جامې لتې صفا کونه۔

**ډرائي کلينر**:۔(ډْ+را+ئيْ+کْ+لي+نَ+رْ) ،[انګ ، اس ، ص ، مذ] ، بغېـر د وينځلو جامې لتې صفا کوونکے، د ډرائي کلين کار کوونکے۔

**ډرائينـګ**:۔(ډْ+را+ئـې+نْ+ګْ)، [انـګ، اس ، مـذ] ، نقشـه کشـي، د نقشـې جوړولوکار۔

**ډرائينګ رُوم**:۔(ډرائينـګ+رُوْ+مْ [انګ اس، مـذ] ،(۱) د ناستې کمـره، هغـه بېټـک چې د ناستې د پـاره اٰرام کرسۍ يـا صـوفې وغېـره پـه ښـکلي ترتيـب پکښې پرتې وي۔ (۲) پـه مدرسـه کښې ډرائينـګ د مضـمون لولولوکوټه۔

**ډرائينـګ ماسـټر**:۔(ډرائينګ+ما+س+ټَ+رْ)[انـګ، اس ص، مـذ ، وا ، ج: ډرائينګ ماسټران (مؤ، وا: ډرائينګ ماسټرې ،ج: ډرائينګ ماسټرې) ] ،د ډرائينګ ښوولو اُستاذ۔

**ډرائيـور**:۔(ډْ+را+ئـې+وَ+رْ)، [انـګ، اس، مـذ ، وا ، ج: ډرائيـوران] ، د ګـاډي چلووُنکے، شوفر، موټروان۔

ډرائيور چې په ګېراج کښې په موټر وهلې رنجې
اوده کارخـــانــــه دارننه بنـــګله کښې خرړېدو (پرېشان خټک)

**ډرائيوري**:۔(ډْ+را+ئـې+وَ+ريْ)، [پ ،اس، مـؤ] ، موټرواني، شوفري، دګاډي د چلولو کار، ډرائيونګ۔

**ډرائيونګ**:۔(ډْ+را+ئـې+و+نْ+ګْ)،[انګ ، اس ، مذ] ، و۔ډرائيوري۔

**ـــ کول**:۔اص، ګاډے چلول، موټرواني کول۔

**ډر بل**:۔(ډ+رَ+بَ+لْ)، [اَف:پ (قاموس) کلمه] ، ګډان يـا چېلـي سره جنګولـود پاره دا کلمه وئيلے شي۔

**ډرپل** :- (ډ+رْ+پَ+لْ) [اَف:پ (قاموس) اس، مذ ، (مؤ ،وا: ډرپله ،ج: ډرپلې] ، (۱) فضول بنیادم، بېکاره سړے، خوشاتاړے.(۲) بې تنخوا نوکر .

**ډرپلتوب** :- (ډ+رْ+پَ+لْ+تو+بْ)، [اَف: پ (قاموس) اس ، مذ] ، ډرپلتیا ، ډرپلي ،فضولتیا ، بے باکي، خوشامنده .

**ـــ کول**:- (اَف) اص، بې باکي کول، خوشامندي کول .

**ډرپلتیا** :- (ډ+رْ+پَ+لْ+تْ+یا) ، [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ] ، و - ډرپلتوب .

**ډرپلي** :- (ډ+رْ+پ+لي)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ] ، و-ډرپلتوب .

**ډرپوک** :- (ډَ+رْ+پُـو+کْ)[ه، اس، مذ ، (مؤ، وا: ډرپُوکه، ج: ډرپُـوکې)] ،ډارن، یرندُونکے، بُزدل .

**ډرت** :- (ډْ+ر+تْ)،[اپ ، اس، صو ، مذ] ، د تېز اَواز، ترت، پرت .

**ډرتا** :- (ډ+ر+تا) ، [اپ، اس، صو، مؤ] ، ډرتهار، پرله پسې د تېز اَواز .

**ډرتان** :- (ډْ+ر+تـا+نْ)، [اپ (ب،خ) ص، مذ] ، ډزان، ډرتو، تېزن، یرندوکے ،ډاران، ډارن

**ډرتاوه** :- (ډْ+ر+تا+وَه)، [اپ، اس، مؤ، وا ،ج: ډرتاوې] ، مستي، خوشحالي .

**ډرتک** :- (ډ+رْ+ت+کْ) [اَف:پ (قاموس) اس، مذ ، (مؤ: ډرتکه] ، (۱) تېزن. (۲) فضول، عبث بنیادم ،خوشاتاړے، ډرتن، ډرتُو ،ډرتے، بې خُولې بنیادم .

**ډرتکي** :- (ډ+رْ+تَ+کيْ)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ] ، د ځناور برغـدې لتې، خرتیزے .

**ډرتن** :- (ډْ+ر+تَ+نْ) ،[اپ،اس، ص،مذ ، (مؤ، وا: ډرتنه،ج:ډرتنې] و-ډرتک

**ډرتُو**:-(ډْ+ر+تُوْ) [اپ، ص، مذ ، (مؤ، وا: ډرتنه ،ج: ډرتنې] ، و- ډرتک .

**ډرتهار** :- (ډْ+ر+تَ+ها+رْ)، [اپ، اس، صو، مذ] ، و-ډرتا .

**ډرتې**:- (ډْ+ر+تې) [اپ، اس، ج ، مؤ] ، خوشې خبرې ،عبث خبرې، ډُوزې .

**ډرتے** :- (ډ+ر+تَے) ، [اپ، اس، ص، مذ] ، و-ډرتک .

**ډرخوبارے** :- (ډَ+رْ+تسـو+با+ړَے)[اپ ،اس، ص، مذ]خوشـاتاړے، خوشکے، فضول بنیادم .

**ډرسک**:- (ډ+رْ+س+کْ)، [اَف:پ (قاموس) اس، مذ] ،ډک، درچک، ګنه ګُونه .

**ډرل** :- (ډْ+ر+لْ) ، [انګ ،اس، مذ]، پرېټ ، فوځي قواعد .

**ډرل ماسټر**:- (ډرل+ما+سْ+ټَ+رْ)، [انګ، اس، ص، مذ ، وا ، ج: ډرل ماسټران (مؤ، وا، ډرل ماسټره ،ج: ډرل ماسټرې)]د پرېټ یا قواعد اُستاذ .

**ډرل ماسټري** :- (ډرل+ما+سْ+ټَ+رِيْ)، [اپ، اس، مؤ] ، د پرېټ داستاذۍ کار

**ډرل مشین** :- (ډرل+مَ+شِي+نْ)، [انګ، اس، مذ] هغه مشین چې سُومبه پکښې لګېدلې وي او سُوړې پرې ویستلے شي .

**ډرم** :- (ډْ+ر+مْ) ، [انګ، اس، مذ ، و ، ج: ډرُونه]، (۱) د انګریزي بېن باجې ډولکے.(۲) د تادکولو غټه پیپه .

**ډرن** :- (ډ+ر+نْ)، [اپ، اس، ص، مذ ، (مؤ، وا، ډرنه ،ج: ډرنې] ، (۱) ډرتن، ډرتُو، ډرُو. (۲) یرندُوکے .

**ډرنا** :- (ډَ+رْ+نا)، [اپ، اس، مذ] ، بې کاره، ډبُوک .

**ډرو** :- (ډ+رُوْ)، [اپ، اس، ص ، مذ] ، و-ډرن .

**ډروجانی** :- (ډ+رو+جـا+ن+ی)[اَف:پ (قـاموس) اس، ص، مـؤ] ، ډرې، توقـه ټقاله، مسخره

**ډرها**:-(ډ+رْ+ها) [اپ ، ص] ، (۱) د تېز پرله پسې اَواز.(۲) خوشې او عبث خبرې .

**ډرهار** :- (ډ+ر+ها+رْ) ، [اپ ،اس ،مذ] ، (۱) ډرتا ، ډرهچ.(۲) د توقې او طغنې په توګه دا ټکې وئېلے شي .

**ډرهچ** :- (ډ+رْ+هَ+چْ)، [اَف:پ (قاموس) اس، مذ)] ،و- ډرهار .

**ډرئي**:-(ډ+ر+ئِيْ) [اَف:پ (قاموس) اس، مؤ] ، توقه، مسخره، ملنډه، خندا.

**ـــ وهل** :- اص، چا پورې توقې کول .

**ډرې** :- (ډ+رې) ، [اپ ،اس، صؤ] ، د ګډو د رابللو اَواز .

**ـــ کول** :- اص ،ګډې رابلل .

**ډرې** :- (ډ+رې) ، [اپ ،کلمه] ،د ګډو د شړلو د پاره استعمالېږي .

**ـــ کول** :- اص ،ګډې شړل .

**ډریا**:-(ډَ+رْ+یا) [اپ (ب،خ) اس ،مؤ]،ډوریا ،د ململو شان، یوه کپړه، سلاده .

**ډربدل**:- (ډ+رې+د+لْ)، [اپ، مص لا] ، (۱) یربدل، ویربدل،تسپدل.(۲) دیـو مخه تېزونه اچول، پرله پسې تېزونه اچول.(۳) عبث غرېدل ،ترېدل .

**ډربـدلے** :- (ډ+رې+دلَـے)، [اپ، مـف، مـذ ، وا ، ج: ډرېدلي ،مؤ: ډربدلې] ، (۱) یربدلے، ویربدلے، تسپدلے.(۲) پرله پسې تېزونه اچولے.(۳) عبث غرېدلے، ترېدلے .

**ډربـدنګ** :- (ډ+رې+دَ+نْ+ګْ)، [اَف:پ (قاموس) حمص] ، (۱) ډربدنه، یربدنه، ویربدنه، ترسبدنه.(۲) په یو مخه تېزُونه اچونه.(۳) عبث غرېدنه، ترېدنه .

**ډربدنه** :- (ډ+رې+د+نَه) ، [اپ ، حمص] ،و-ډربدنګ .

**ډربـدُونکے** :- (ډ+رې+دُو+نْ+کـے) [اپ، فـاع، مـذ ، وا ، ج: ډربـدُونکي، مؤ: ډربدُونکې] ، (۱) یربدُونکے، ویربدُونکے، ترسبدُونکے.(۲) په یو مخه تېزونه اچوُونکے. (۳) عبث غربدونکے، ترېدُونکے .

**ډرے ډرے**:-(ډ+رَ+ے +ډ+رَ+ے) [اپ (ب،خ، اس، صو] ، د ګډې د رابللو اَواز

**ډربس**:- (ډْ+رې+سْ) ، [انګ، اس، مذ ، وا ، ج: ډربسُونه] ، دربشې، وردي، جامې .

**ډربسنګ رُوم**:- (ډْ+رې+س+نْ+ګْ+رُو+مْ)، [انګ، اس، مذ] ، (۱) د جامو بدلولو کوټه.(۲) د پټې لګولو کوټه .

**ډرې شه**:-(ډَ+رَ+ې+شَه) [اپ ،اس، صو] ګډې شړلو د پاره وئېلے شي .

**ډریکائي** :- (ډَ+رې+کا+ئي)[اپ، (وز)، اس، مذ ، وا ،ج: ډریکې] ، د ګډې بچے، د مېږې زوے

**ډرېلے** :- (ډ+رْ+ې+لَے)، [اَف:پ (قاموس)، اس ،مذ] ، یو قسم وانبهٔ چې پلې لري

**ډریو** :- (ډ+رْ+یُوْ)، [اَف:پ (قاموس) کلمه] ، ډرے .

**ډز** :- (ډ+زْ)، [اَف:پ (قاموس) اس، مذ ، (مؤ ،وا: ډزه، ج: ډزې] ، (۱) بې وقوف (۲) دروغژن. (۳) ډُوزمار .

**ډز** :- (ډَ+زْ) [اپ، اس، صو ، مذ ، وا ،ج: ډزُونه] ، (۱) د ټوپک اَواز.(۲) نقصان، تاوان

**ـــ اُوچتول** :- اص، (۱) وهل ټکول.(۲) نقصان مُوندل.(۳) څهٔ کار سرته رسول، ډزویستل

**ـــ ته ټینګېدل** :- اص، تاوان زغمل، نقصان برداشت کول .

**ـــ ختـل** :- اص ، (۱) د ټوپک د ډز اَواز راتلل.(۲) تـاوان مونـدل.(۳) نتیجه ظاهرېدل

**ـــ خطا کېدل** :- اص، نخښنه خطا کېدل، ګذار بې ځایه تلل .

**ـــ خوړل** :- اص، (۱) نقصان خوړل.(۲) وهل خوړل .

**ـــ راتلل** :- اص ، (۱) تاوانېدل.(۲) د ډز اَواز راتلل .

**ـــ کول** :- اص، (۱) ټوپک یا تماچه چلول.(۲) ګذارکول .

**ـــ کېدل** :- اص، ټوپک یا تماچه چلېدل .

**ـــ ورکول**-اص، (۱) چاته نقصان او تاوان ورکول.(۲) څهٔ کار سرته رسول .

**ـــ ویستل** :- اص ،و ډز اُوچتول .

**دیو ډز سره تلل** :- اص، (۱)په یوه ډز مړ کېدل.(۲) په لږ نقصان حوصله بائلل .

**ډزا**:-(ډَ+زا) [اپ، اس، صو، مؤ] ، ډزهار، پرله پسې د ګولوچلېدو اَواز .

**ډزان** :- (ډ+زا+نْ) ،[اپ (ب،خ) ص، مذ] ، ډرتان، ډرتو، تېزن، یرندُوکے .

**ډزان** :- (ډ+زا+نْ)، [اپ (بنو) اس، ص ،مذ] ، فضول بنیادم، خوشاتاړے، ډُوزې

ویشتونکې، ډُوزمار ۔

**ډزاوو** :۔(ډ+زا+وُوْ)، [اَف:پ (قاموس) اِس، مذ]، د املُوکو مېوه ۔

**ډزاے** :۔(ډ+زا+ے ) [اپ(بنو) اِس، مذ، وا، ج: ډزيِ]، يو مارغۀ چې د نورو ورو مارغانو اگې خوري ۔

**ډزُوز**:۔(ډَ+زْ+ډُو+زْ)، [اپ، اِس، صو، مذ]،(۱) ډزو ډُوز، پـه يـو مخـه ډېـکـو اَواز۔

(۲) شور زوږ۔(۳) حرکت۔(۴) په وجه، له مخې، له کبله ۔

د اشنـا د بېـلتـانـۀ لـه ډزه ډُوزه

هسې اوسوم لکه اوسېزي څوک دروُزه (علي خان)

**ـــ کول** :۔ اِص، (۱) ډزوډُوز کول، پـه يـو مخـه ډېـک چلول۔(۲) شـور زوږ کول (۳) حرکت کول ۔

**ـــ کېدل** :۔ اِص ،(۱) ډز وډُوز کېدل، په يو مخه ډېکونه چلېدل۔(۲) شور زوږ کېدل۔ (۳) حرکت کېدل ۔

**ډزوډوز** :۔ (ډَ+زْ+و+ډُوْ+زْ) ،[اَف:پ (قاموس) اِس، صو، مذ]، و- ډزډُوز ۔

**ـــ کول** :۔ اِص، و -ډز ډُوز کول ۔

**ـــ کېدل** :۔ اِص، و - ډز ډُوز کېدل ۔

**ډز غرپ** :۔ (ډَ+زْ+غْ+رَ+پْ)، [پ، اِس، ص، مذ]، ډزوغرپ، وهل ټکول ۔

**ـــ کول** :۔ اِص، وهل ټکول کول ۔

**ـــ کېدل** :۔ اِص، وهل ټکول کېدل ۔

**ډزوغرپ** :۔(ډَ+زو+غْ+رَ+پْ) [اَف:پ (قاموس)، اِس، ص، مذ]، و- ډزغرپ

**ډزول** :۔ (ډ+ز+و+لْ)، [اپ ،مص مت]، (۱) وهـل ټکـول۔(۲) ډېـک تمـاچې چلول ۔(۳) په چا د ډېک تماچې ډزونه کول ۔

**ډزولے** :۔ (ډ+ز+و+لَے)، [اپ، مف ،مذ ، وا ، ج: ډزولي، مؤ: ډزولې]، (۱) وهلے ټکولے۔ (۲) په ډېکو تماچو ويشتلے۔(۳) ډېک تماچې خلاص کړي يا چلولي ۔

**ډزونګ** :۔ (ډ+وَ+نْ+ګْ) [اَف:پ (قاموس) ، حمص] (۱) پـه ډېکـو تمـاچو ويشتنه۔ (۲) ډېک تماچې چلونه ۔

**ډزونه** :۔ (ډ+ز+و+نهَ)، [اپ ، حمص]، و-ډزونګ ۔

**ډزوونکے** :۔ (ډ+ر+وُو+نْ+کَے) [اپ، فـاع، مـذ، وا ،ج: ډزوونکـي ،مـؤ: ډزووُنکې] (۱) وهُونکے ټکوُونکے۔(۲) ډېک تماچې چلوُونکے۔ (۳) په چا د ډېک تماچې ډز کوُونکے ۔

**ډزه** :۔ (ډ+زَه)، [اَف:پ (قاموس) اِس ،مؤ ،وا ،ج: ډزې]، کُونه ۔

**ډزهار** :۔ (ډ+ز+ها+رْ)، [اپ، اِس، صو، مذ]، و- ډزا۔

**ډزې** :۔ (ډ+زې) (پ، اِس، ج ، مؤ) دروغ، عبث خبرې ۔

**ويشتل** :۔ اص ډُوزې ويشتل، عبث خبرې کول، دروغ وئېل ۔

**ډزې** :۔ (ډَ+زې)، [اپ، اِس، مؤ، ج]، ډېـک تمـاچې د چلېـدو يـا خلاصېدو اَواز ۔

**ـــ کول**:۔اِص (۱) ډېک تماچې چلول۔(۲) د خوشحالۍ اظهار کول ۔

**ـــ کېدل** :۔ اِص ،(۱) ډېک تمـاچې خلاصـېدل۔(۲) د خوشـحالۍ اظهـار کېدل ۔

**ډزېدل** :۔ (ډ+زې+د+لْ)[اپ، مص لا](۱) وهلے کېدل، وهل خوړل(۲) ډېـک تماچې خلاصـېدل (۳) پـه ټيزونـو سـرکېدل۔(۴) عبـث خبـرې کـول۔ (۵) د چاسره په تره مقابله کول ۔

**ډزېـــدلے** :۔ (ډ+زېـد+لَے)، [اپ، مـف، مـذ، وا، ج: ډزېـدلي ،مـؤ: ډزېدلې]،(۱) وهلے ټکولے، وهل خوړلے۔(۲) ډېـک تماچـه خلاصـه کړے ۔(۳) په ټيزونو سر شوے۔(۴) عبث غږېدلے۔(۵) د چاسره په نره مقابله کړے ۔

**ډزېدنګ** :۔(ډ+زې+دَ+نْ+ګْ) [اَف:پ (قاموس) حمص]، (۱) ډزېدنـه، ډزېـدۀ وهـل خوړنـه۔(۲) ډېـک تماچـه خلاصـېدنه۔(۳) پـه ټيزُونـو سرکېدنه۔(۴) عبث خبرې کېدنه۔(۵) د چاسره په نره مقابله کېدنه

**ډزېدنه** :۔ (ډ+زې+د+نهَ) [اپ ، حمص]، و-ډزېدنګ ۔

**ډزېـدُونکے** :۔(ډ+زې+دُو+نْ+کَے) [اپ، مـف، مـذ ،وا ، ج: ډزېـدُونکي ،مـؤ: ډزېـد ېوُونکې] ،(۱) وهـل خـوړُونکے۔(۲) ډېـک خلاصـېدُونکے۔ (۳) په ټيزُونو سر کېدُونکے۔(۴) عبث غږېدُونکے ۔

**ډزېدۀ**:۔(ډ+زې+ده) [اپ ، حمص] ،و-ډزېدنګ ۔

**ډسپلن** :۔(ډ+س+پْ+ل+نْ) [انګ: ، اِس، مذ]، ډسپلنګ، ضبط ۔

**ډسـپلنګ** :۔ (ډ+سْ+پْ+ل+نْ+ګْ)[اِپ (عـا) انـګ: ډسـلپن، اِس ، مـذ]،و - ډسلپن ۔

**ډسپنسر** :۔ (ډ+سْ+پ+نْ+سَ+رْ) ،[انګ ،اِس ، مذ]، کمپوډر د هسپتال يا دُرملتون هغه سړے چې د نسخې مطابق دارو جوړوي او پـه ژوبلـو پټۍ لګوي ۔

**ډسپنســري** :۔ (ډ+سْ+پ+نْ+سَ+رِيْ)[انـګ، اِس ،مـؤ]، شـفاخانه، د دارو درُملو ځاے

**ډسپيچ** :۔ (ډ+سْ+پې+چْ)، [انګ ، فع]، لېږل، استول ۔

**ډسپيچر** :۔ (ډ+سْ+پې+چَ+رْ)، [انګ، فاع ، مذ]، د دفتر هغه بابُو چې ډاک لېږي او وصول کوي ۔

**ډسټراير** :۔ (ډ+سْ+ټ+را+يَ+رْ) ، [انګ ، اِس ، مـذ]، تباه کـوُونکے بحري جهاز ۔

**ډسټرکټ** :۔ (ډ+سْ+ټ+ر+کْ+ټْ)، [انګ، اِس ، مذ]، ضلع ۔

**ډســټرکټ انســپکټر** :۔ (ډسـټرکټ+ا+نْ+سْ+پ+کْ+ټَ+رْ)، [انـګ ،اِس، ص، مذ] ،د ضلعي معائنه کوُونکے افسر ۔

**ډسټرکټ بورډ** :۔ (ډسـټرکټ +بو+رْ+ډْ)[اَنګ ، اِس ، مـذ]، د منتخبـو غـړو هغه ټولے چې د ضلعې د تعليم او د تګ راتګ بندوبست کوي نن پرون ورته ډسټرکټ کونسل وائي

**ډســټرکټ کونســل** :۔ (ډسـټرکټ+کَو+نْ+سَ+لْ)،[اَنګ ، اِس ، مـذ]، و - ډسټرکټ بورډ

**ډسټرکټ مجسټرېټ** :۔ (ډسټرکټ+مَ+ج+سْ+ټْ+رې+ټْ)، [اَنګ ، اِس ، مذ] ،ډپټي کمشنر چې ورسره د مجسټرېټ اختيارات هم وي ۔

**ډســـټري بيـــوټر** :۔ (ډ+سْ+ټْ+رِي+بِـــي+وْ+ټَ+رْ)، [اَنـــګ ، اِس ، مذ]، تقسيمووُنکے، وېشُونکے، يو بل طرف ته خوروُونکے ۔

**ډســـټلډواټر** :۔ (ډ+سْ+ټ+لْ+ډْ+وا+ټَ+رْ)، [اَنـــګ ، اِس ، مذ] ،هغـــه کشيد کړې صفا اوبۀ چې د انجکشن سره ګډولے شي ۔

**ډسچارج**:۔(ډ+سْ+چا+رْ+جْ)، [انګ ، اِس ، مذ]، فارغ، ويستلے، خارج ۔

**ډسه** :۔(ډَ+سْ+سَه)، [اپ (ب،خ)، اِس، مؤ، وا، ج: ډسې] هغـه لـرګے چې د اوبۀ د بار سره تړلے وي او دواړه باړونه سره يو ځاے کوي، داسه ۔

**ډسـک** :۔ (ډ+س+کْ)، [اَنـګ، اِس، مـذ ، وا ،ج: ډسـکُونه]، د هلکـانو د کتابونو د کېښنولو هغه مېز چې سلامې جوړ شوے وي ۔

**ډسکاؤنټ** :۔ (ډ+س+کا+ؤ+نْ+ټْ)، [اَنګ ، اِس ، مذ]، کمېشن ۔

**ډسکي**:۔(ډ+سْ+کِيْ) [اَف:پ (قاموس) اِس ، مؤ ]، ډوزې، لاپې، دروغ ۔

**ـــ ويشتل** :۔ (اَف)اِص ،ډُوزې ويشتل، لاپې ويشتل دروغ وئېل ۔

**ډســمس**:۔(ډ+س+مِ+س) (اَنـګ ، ص ، مـذ)خارج، برخاسـت، موقـوف، ويستلے ۔

**ـــ کول** :۔ اِص، خارجول، برخاست کول، ويستل ۔

**ـــ کېدل** :۔ اِص، خارج کېدل، برخاست کېدل، ويستلے کېدل ۔

**ډغ** :- (ډ+غْ) [اَف:پ (قاموس) اس، مذ ، وا ، ج: ډغـان] ، (۱) د کـونتري پـه شـان يـو مارغـه. (۲) تـع، هغـه سـترګې چـې بهرتـه راوتـې وي. (۳) بُـوخ، غلـې، خاموشـه (۴) هغـه مـېخ يـا لـرګـې چې د چندرو پـه لوبـه کښې ښخ کړے شوے وي او چندرو ورويشتلے شي

**ــــ کښېناستل** :- اِص، پُوخ کښېناستل، غلې کښېناستل.

**ډغ** :- (ډ+غْ) ، [اِپ (ب،خ) ، اس ، مذ] ، و - ډانډت.

**ــــ ويل** :- (ب،خ) اِص، مالوچ ډانډت کول، د ډانډت کار کول.

**ډغ ډبلی**:- (ډ+غْ+ډ+ب+ل+ی) اِپ (ب،خ) اس ، مؤ] ، سامان، ډول ډبلي.

**ډغډغی**:- (ډ+غْ+ډ+غ+ی) [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ] ، دګيدړي د وادهٔ لوبـه، هر کله چې نمر سترګه ليدے شي او باران هم کېږي.

**ــــ کول** :- اِص ،د ګيدړي د وادهٔ لوبه کول.

**ډغډغے** :- (ډ+غْ+ډ+غے) [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ډغډغي] ، (۱) د مرز يابتېر په شان مارغهٔ. (۲) د ماشومانو د لوبو يو څيز چې پـه خرڅولو يا تاوؤلود چيندخ په شان اواز کوي اواکثر په مېلوکښې خرڅېږي.

**ډغره**:- (ډ+غ+رَه) [اِپ ، اس، مؤ ، وا ، ج: ډغرې] ، (۱) ټکره، ديکه.

پـــه هـر قدم باندې ډغرې راکوي تمبېرم
زهٔ د حالاتو په قانون کښې به تر څو اوسېږم (پريشان خټک)

(۲) نقصان، تاوان. (۳) جنګ ، جګړه.

**ــــ خوړل**: اِص ،(۱) ټکره خوړل، ديکه خوړل، څهٔ څيز سره جنګېدل. (۲) تـاوان موندل

**ــــ ورکول**: اِص، (۱) ديکه ورکول، ديکه کول، ټکره ورکول. (۲) تـاوان ورکـول (۳) ساعت تېرے کول، وخت اړول.

وخت ته ډغري ورکوم چې تېر شي
ګني اشنـا زهٔ ښـــوئېـدلے نـهٔ يم (پريشان خټک)

**په ډغره وتلل**:- اِص، څهٔ څيز سره جنګېدل، سرُونه جنګول، مقابله کول.

**د ډغرې نه پاتې کېدل** :- اِص ،د مقابلې توان نهٔ لرل، کمزورے کېدل.

**ډغرې وهل**:- اِص ،ټکرې وهل، سرُونه سره جنګول، ديکې وهل.

**ډغرئي** :- (ډ+غ+ر+ئيْ) ، [اَف:پ (قاموس) اِس ، مؤ] ،د سرُونو ډغرې، د سرُونو ټکرې

**ــــ وهل**:- (اَف) اِص، سرُونه سره جنګول، سرُونه ډقول.

**ډغرې**:- (ډ+غ+رِيْ) [اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـؤ] ، عبث خبرې، فضول خبـرې، تش بکواس

**ډفتېريا**:- (ډ+فْ+تي+رْ+يا) [انګ ، اس ، مؤ] ،خُناق، د مرى بندېدل، د غـاړې هغه خطرناک مرض چې پکښې مرئي‌اوپړسېږي او د سا لاربند شي.

**ډقره**. (ډَ+قَ+رَه) ، [اِپ (مهه) اَش) اس، مؤ، وا ، ج: ډقرې] ،ډغره، ټکره، ديکه.

**ډک** :- (ډَ+کْ) ، (اِپ ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا: ډکـه ج: ډکې] ، (۱) ترسره پـورې پُور، ترخُولې

همګي په خوږو ډک دي
د ګني غـوندې بند بند (خوشحال)

(۲) موړ.

لکه ډک شي هسې تش شي
د شنـاز دې ستـا امــاس (خوشحال)

(۳) غرض. (۴) ټکره، ډغره. (۵) خفه، زهير.

خـالي لاس ورځـې څم حيله مې نـهٔ وه
چې ډک زړهٔ به ئې له ډکه باغه تلل کړم (خوشحال)

(۲) منډاؤ، د دوؤ غوايانو غوېل.

**ــــ اخستل** :- اِص، ډک خوړل، ټکره خوړل، ډغره خوړل.

**ــــ خوړل** :- اِص، و - ډک اخستل.

**ــــ لرل** :- اِص، (۱) غرض لرل، کار لرل. (۲) پُور ساتل.

**په ډکه خُولهٔ** :- اِص، په مينه، په خوږه ژبه ، په پسته ژبه.

چې دا هسې شان په ډکه خولهٔ خندا
مګر نهٔ دے لـه خـزانه خبردار ګُل (عبدالقادرخان خټک)

**ډکه ټوپۍ** :- اِص، هغه ټوپۍ چې د تبلې کار پرې ډېر شوے وي.

ډکه ټوپۍ ملالې سترګې
مور دې کړکښې په بازار کښې خرڅوينه (ټپه)

**ډکه ښځه** :- اِص، اُميد واره زنانه، هغه ښځه چې حمل ئې وي.

ښه وزېږې له ډکې ښځې مار
نهٔ زوولے ځنې زويــه ناهموار (خوشحال)

**ډک** :- (ډ+کْ) ، [اِپ ، کلمـه ، مـذ] ، (۱) د سـندا يـا غوايـهٔ د کښـېښولو اواز. (۲) ډکے ،ورکوټے لرګے. (۳) د څېرې د ونې پانه.

**په ډک ناسته مرغی** :- اِص، (۱) الو تلو ته تياره مرغۍ. (۲) خفه، زهير.

**ډک پک** :- (ډَ+کْ+پَ+کْ) ، [اِپ ، ص ، مذ] ، ډېر ډک، خفه، زهير.

زړګے مې ډک پک دے له ستا د مينې
جـانـانـه ولې ئې بيـا بيـــا لټوې (صادق الله اورکزے)

**ډک تـوب**:- (ډَ+کْ+تـو+بْ) [اِپ ، اِس ، مـذ] ، ډکتيـا ، ډکـوالے ، پُـوروالے ، موړوالے.

**ډکتيا** :- (ډَ+کْ+تْ+يا) ، [اِپ ، اس ، مؤ] ، و - ډکتوب.

**ډک تښنګله**:- (ډَ+کْ+تي+نْ+ګْ+لَـه) ، [اِپ (بنو) اس ، مؤ] ، موسى شـنډک، د ماشومانو يوه لوبه چې يو ډک په زمکه کښې ښخ کړي او هلکان ئې وار په وار په ورکوټي چېلبت کاڼي ولي.

**ډکټېټـر**:- (ډ+کْ+ټـي+ټَ+رْ) [اَنګ ، اس ، مـذ ، وا ، ج: ډکټېټـران] ، خپلـواک حاکم

**ډک جهان**:- (ډ+کْ+جَ+ها+نْ) ، [اِپ ، اِس ، ص ، مذ] ، ټول جهـان، ګرده نړۍ، ټول عالم.

خپتې تـا دارنګه رسوا کړمه زهٔ
په ډک جهان دې بې نوا کړمه زهٔ (صادق الله اورکزے)

**ډک ډک** :- (ډ+کْ+ډ+کْ) ، [اِپ ، کلمـه ، مـذ] ، هغـه اواز چـې د څـاروي د کښېنولو يا د رسۍ اچولو د پاره وئېلے شي.

**ډکر** :- (ډَ+کَ+رْ) ، [اِپ ، (سو) ، ص] ، خبره اُوږدول.

**ډکوالے** :- (ډَ+کْ+وا+لَے) ، [اِپ ، اس ، مذ] ، و - ډکتوب.

**ډکوسله**: (ډ+کو+س+لَه) ، [اِپ ، ه: ډهکوسلا ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ډکوسلې] ،د ځان نه جوړه کړې خبره ،دروغ، ټګي.

هر پريشان پښتون چې وترې خوشحال خټک شي
چېل د مغلو ډکـوسـلې دي وي بـه تېرې به شي (خوشحال)

**ډکوسله مار**:- (ډکوسله+ما+رْ) ، [اِپ ، اس ، ص ، مذ ، (مؤ ، وا: ډکوسله مـاره، ج: ډکوسله مارې] ،د ځان نه خبرې جوړوونکے سړے، دروغژن.

**ډکوسے** :- (ډَ+کو+سَے) [اِپ (سو) اس ، مذ ، وا ، ج: ډکوسي] ،ډګوسے، بېکـار کاڼے

**ډکول** :- (ډَ+ک+و+لْ) [اِپ ، مص مت] ، (۱) پُور کول، سرترسره کول. (۲) د چيلم سرته تمـاکُو اچول. (۳) حامله کول ،اُميدواره کـول. (۴) مړول، خوراک ورکول

**ډګون**:- (ډ+ګُو+نْ) [اِپ ، ص ، مذ] ، پُور او ډک ځاے.

**ډکونګ** ـ (ډ+ک+وَ+نْ+ګْ)، [اَف:پ (قاموس) ، حمص] ، (۱) ډکونه، پُور کونه ،سرترسره کَونه
ـ(۲) د چیلم سرته تمـاکُو اچونـه ـ(۳) حامله کونه، اُمیـدواره کونـه ـ(۴) مړَونـه، خوراک ورکونه ـ

**ډکونه** ـ (ډَ+ک+و+نه) ، [پ ، حمص] ، و - ډکونګ ـ

**ډکووُنکـے** ـ (ډَ+ک+ووُ+نْ+کَـے) [پ ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ډکـووُنکي، مـؤ: ډکووُنکې] ،
(۱) پُـور کـووُنکے، سرترسـره کـووُنکے ـ(۲) د چـیلم سـرته تمـاکو اچـووُنکے ـ(۳) حاملــه کــوونکے، اُمیــدواره کــووُنکے ـ(۴) مَــړووُنکے، خــوراک ورکووُنکے ـ

**ډکه** ـ (ډ+کَه) ، [اَف:پ (قـاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: ډکې] ، (۱) ټکره، ډغـره، دیکـه ـ(۲) د اوبـو د ایسـارولوبند ـ(۳) د پیریـانو غُوټـه ـ(۴) پـه ذمـه، پـه غـاړه، عهده ـ(۵) د دریاب د غـاړې پخونـه ـ(۶) حادثه، پیښـه، تکلیـف، صدمه ـ

شــــړي وړپښتون بـــه سل پـــه ډکه یوسي
کشمیري چې بغرګ شالونه ئې په دوش دي (خوشحال)

**ـــ پیښیدل** ـ اص، څهٔ حادثه پیښیدل،څهٔ واقعه جوړیدل ـ

**ډکه** ـ (ډَ+که) [اَف:پ (قـاموس) اس ، مؤ ، وا ، ج: ډکې] ، بلاربـه ،اُمیـداوره، حامله ـ

ښځهٔ که وزیږي له ډکې ښځې مار
نـــهٔ زوولے ورنــه زویــه ناهموار (خوشحال)

**ډکے** ـ (ډ+کَے) ، [پ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ډکې] ، (۱) تیلے،نرۍ څانګه ـ

نن یو وچ ډکے چې د جالې نه په کښته راغے
یــو ملازم پـه بې خالۍ سره ټوټې ټوټې کړو (پریشان خټک)

(۲) د ربړې ویښته ـ(۳) ورکوټې ونه ـ

**ـــ پریکول** ـ (سو) اص ،د هندوانو یو رسم چې د وادهٔ نه پس ناوې یو ډکے په لاس کښې اُونیسي او هلک ئې په تُوره پرېکوي ـ

**ډکولرګوته تلل** ـ (سو) اص ،د خشاک او لرګو د پاره غرهٔ ته تلل ـ

**ډکے** ـ (ډَ+کَے) ، [ پ ، اَس معرفه] ، په اشنغر کښې د یو کلي نوم

**ډکیدل** ـ (ډَ+کې+د+لْ) اِپ ، مص لا] ، (۱) پُور کیدل، سرترسره کیدل ـ

زما په ذهن روح او زړهٔ کښې یوه خلا جوړه شي
داسې خلاس ده چې په هیڅ څهٔ ډکیدلے نهٔ شي (پریشان خټک)

(۲) د چیلم سرته تماکو اچول ـ(۳) اُمیدواره کیدل، حامله کیدل ـ(۴) مړیدل ـ

**ډکیدنګ** ـ (ډَ+کې+دَ+نْ+ګْ) ، [اَف:پ (قـاموس) حمص] ، (۱) ډکیدنه، ډکیدهٔ ،پُـور کیدنـه ـ(۲) اُمیـدواره کیدنـه، حاملـه کیدنـه ـ(۳) مَړیدنـه، خـوراک ورکولے کیدنه

**ډکیدنه** ـ (ډَ+کې+د+نَه) ، [پ ، حمص] ، و - ډکیدنګ ـ

**ډکیدُونکے** ـ (ډَ+کې+دُو+نْ+کَے) ، [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ډکیدوُنکي ، مؤ: ډکیدوُنکې] ، (۱) پـور کیدُونکے، سرترسره کیدُونکے ـ(۲) د چیلم سرته تماکُو اچولے کیدُونکے ـ(۳) مړیدُونکے ،خوراک ورکولے کیدُونکے ـ

**ډکیدهٔ** ـ (ډَ+کې+ده) ، [پ ، حمص] ،و - ډکیدنګ ـ

**ډګ** ـ (ډ+ګْ) ، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ] ، (۱) د المـارۍ لاندینۍ حصّـه ـ(۲) د دېګ انغـرے ـ(۳) ډوبلـه، د اَس یـو خـاص تـګ ـ(۴) بـالائـي ـ(۵) د موټر ډګي ـ

**ډګ اَس** ـ (ډ+ګْ+اَ+سْ) ، [اَف:پ (قـاموس) اس ، ص ، مـذ] ، ډوبلـن ،د ډګ پـه چال تلُونکے اَس ـ

**ډګ ډګ** ـ (ډ+ګْ+ډَ+ګْ) [پ (ب،خ) اس ، مـذ] ، ارګوډې لګوډې، ګوډ ګـودک، ګوډې، شا ګوډلې، اډې ګوډې، په یو پښه ټوپُونه ـ

**ـــ وهل** ـ اص ،په ارګوډې تلل، په یوه پښه ټوپُونه هول ـ

**ډګـډګلے** ـ (ډ+ګ+ډ+ګ+لَـے) [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـذ] ، (۱) ګـډوډکار، خـراب تُـراب ـمتل:پـه یـو ودان پـه دؤو ویـران پـه دریـم ډګـډګلے ـ(۲) د ماشُومانو یوه لوبه ـ

**ډګــډګی** ـ (ډ+ګْ+ډ+ګ+ی) ، [اَف:پ (قــاموس) اس ، مـؤ] ، کنـدې کپـړې زمکه،هغه ذمکه چې هواره نهٔ وي ـ

**ډګډګے** ـ (ډ+ګْ+ډ+ګَے) ، [پ ، اس ، مذ ، وا] ، (۱) موټر سائیکل ـ(۲) ټکټکه، د میچنې د دؤو پلُونو پـه مینځ کښې سیخ ـ(۳) د بیزو د لوبولو وړوکے ډولکے

**ډګر** ـ (ډ+ګ+رْ) [پ ، اس ، مذ] ، (۱) خالي میدان ـ(۲) د یو مارغهٔ نُوم ـ

لکه ټګ او دغاباز وي
په مارغـانو کښې ډګر (رحمٰن)

**ـــ ته راوتـل** ـ اص، (۱) میـدان تـه راوتـل ـ(۲) مقـابلې تـه راوتـل ـ(۳) پـټ راز ښکاره کیدل

**ـــ ته رااېستل** ـ اص ،(۱) څوک مقابلې ته رابهر کول ـ(۲) راز ښکاره کول ـ

**ـــ ته راوتل** ـ اص، (۱) میدان تـه راوتـل، مقـابلې د پـاره رابهـر کیـدل ـ(۲) راز ښکاره کیدل، خبره خوریدل ـ

**په ډګر کښیناستل** ـ اص ،(۱) په زمکه کښیناستل ـ(۲) تباه کیدل، ډبریدل ـ

**په ډګر ویشتل** ـ اص، په میدان غورځول، مایُوسه کول ـ

د چا په یادو چې به زړهٔ زما هوا کوله
هغه ناترسې بې خبره په ډګر وویشتم (پریشان خټک)

**ډګر** ـ (ډَ+ګَ+رْ) [پ ، اس معرفه] ، د بُونیر په علاقې کښې د یو کلي نُوم ـ

**ډګرجنرال** ـ (ډَ+ګَ+رْ+جِ+نْ+را+لْ) ، [اَف ، اس ، ص ، مذ] ، یوه فـوځي عهده چې د لفټننټ جنرل برابره وي ـ

**ډګــرمن** ـ (ډَ+ګَ+رْ+مَ+نْ) [پ (اَف) اس ، ص ، مـذ] ، یـوه فـوځي عهـده چـې د کرنیل برابره وي ـ

**ډګرنرے** ـ (ډَ+ګَ+رْ+نَ+رَے) [پ ، اس معرفه] ،د کرک پـه ضلع کښـې د بـار کوختیکو یو کلے ـ

**ډګـروال** ـ (ډَ+ګَ+رْ+وا+لْ) [پ (اَف) اس ، ص ، مـذ] ، یـوه فـوځي عهـده چـې د بریګیډئیر برابره وي ـ

**ډګره** ـ (ډ+ګ+ره) [پ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ډګرې] ، شاړه زمکه، مَیره ـ

**ډګـري** ـ (ډ+ګْ+رِيْ) ، [انـګ ، اس ، مـؤ ، وا ،ج: ډګـرۍ، ډګریـانې] ، (۱) د عـدالت د جائیداد پـه حقلـه فیصلـه ـ(۲) سند ،د څوارلسـم جماعـت یـا د هغه نه پاس ـ

ستا په غیرت باندې قربان شه په پنځُونو ډګرۍ
تـانــه لُـــوګې شه ددنیا یـونیورسټۍ پښتنې (پریشان خټک)

**ډګـري ـ اخسـتل** ـ اص ،(۱) د جائیـداد پـه حقلـه د عـدالت د فیصـلې حُکـم حاصلول ـ (۲) دڅوارلسم جماعت یا د هغه نه پاس سند ترلاسه کول ـ

**ـــ ورکول** ـ اص، (۱) د جائیداد په لړ کښې د چاپه حق کښې فیصله ورکول ـ
(۲) د څوارلسم جماعت یا د هغه نه پاس سند ورحواله کول ـ

**ډکشـنري** ـ (ډ+کْ+شْ+نَ+رِيْ) [انـګ ، اس، مـؤ، وا، ج: ډکشـنرۍ، ډکشـنر یانې] ، لُغت، قاموس ـ

**ډګلن** ـ (ډ+ګْ+ل+نْ) ، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ] ، ډوبلن ،هغه اَس چې چال ئې ښهٔ نهٔ وي، په یرغه تلُونے اَس ـ

**ډګوسے** ـ (ډَ+ګو+سَے) ، [پ ، (سو) اس ، مذ، وا، ج: ډګوسي] ، و- ډکوسے

**ډګول** ـ (ډ+ګ+و+لْ) ، [اَف: پ (قاموس) فاع ، مذ] ، د څادر ووڅېر ـ

**ډکه** :ـ (ډ+که)، [اَف: پ (قاموس) اِس ، مؤ]، غېن، ذکر، غېن ـ

**ډکه بوز** :ـ (ډ+ک+بو+زْ)، [اَف:پ (قاموس) فاع ، مذ]، غووؤنکے ـ

**ډکـی** :ـ (ډَ+ک+ی)، [پ (ب،خ) اِس ، ص ، مـؤ]، د تېـر یـا ښـځې د پـاره پـه عامیانه ژبه کښې وئېلے شي ـ

**ډکـي** :ـ (ډ+ک+ئـيْ) [اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـؤ]، (۱) د ډکـه اسـم تصـغیر، غېنکے (۲) هغه لښته چې سرئې کوږ وي ـ

**ډکي** :ـ (ډ+کيْ)، [انګ ، اِس، مؤ، وا ، ج: ډکۍ]، ډک، د موټر هغه حصّه چې سامان پکښې کېښېښولے شي ـ

**ډکے** :ـ (ډ+کَے)، [اَف:پ (قاموس) اِس ، مذ]، مانده څاروے، تپ څناور ـ

**ډل** :ـ (ډَ+لْ)، [پ ، اِس، مذ ، وا ، ډلُونه]، (۱) ډال، د وازدو غـوړي، شـله مېـژه. (۲) ښانګور لرګے. (۳) د وښویا د خاورو راغونډولو یوه آلـه. (۴) جنګۍ، ګنې ګوُرې ونې، بن. (۵) ګڼه ګوڼه، جمع ـ

**ډلکے** :ـ (ډ+ل+کَے) [اَف:پ (قاموس) اِس، مذ ، وا ، ج: ډلکي]، هغه غړکه چې کُرت پکښې کښېږدي ـ

**ډلګۍ** :ـ (ډ+ل+ګ+ی) [پ ، اس تصغیر، مؤ]، ورکوټې ډله ـ

**ډلګۍ مشر** :ـ (ډلګۍ+م+ش+رْ) [اَف:پ (قاموس) اِس، ص، مذ ، و ، ج: ډلګۍ مشران]، حوالدار، د ورکوټې ډلې مشر ـ

**ډلـوګي** :ـ (ډ+لـو+ګ+ی)، [اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـؤ]، بُـوډوګۍ، بـوډۍ، مکاره ښځه ـ

**ډله** :ـ (ډَ+له) [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ډلې]، (۱) ټولے، جماعت ـ

رقیب نیت د درستې ډلې رانه کوږ کړ
پــه یــوهٔ کارهٔ لرګي شي تمام بار کج (علي خان)

(۲) جنګۍ، ګڼې ګورې ونې ـ

**ډلـی** :ـ (ډَ+ل+ی)، [اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـؤ]، (۱) د خزلـو ټـوکری. (۲) د انځیرانو د راغونډولو ټوکری ـ

**ډلیت** :ـ (ډَ+لي+تْ)، [پ ، اِس ، مذ]، (۱) هغه نوکر چې په مالک پسې وسله ګرځوي. (۲) د دروازې څوکیدار ـ

زیــات وکم بــه ئې یــو نـهٔ سم د ډلیتو
مرئیے هر حکم چې ورې خو د څښتن ورې (علي خان)

**ډلې ډلې** :ـ (ډَ+لې+ډَ+لې)، [پ ، ص]، ټولي ټولي، ډېر زیات ـ

زهٔ خوشحال به بل د یار برابر نهٔ کړم
په جهان که ښکلي ډېر شي ډلې ډلې

**ډم** :ـ (ډ+مْ) [پ ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ډمـان ، (مـؤ ، وا : ، ډمـه، ج: ډمې، ډمانې)] (۱) ډول غږوُونکے، متل: ډم چې ډول وهي زور ئې لري. (۲) نائي، حجام ـ

**ډم** :ـ (ډَ+مْ) [اَف:پ (قــاموس) اِس ، مـــذ ، وا: ډمُونـــه]، (۱) د ډول آواز (۲) ولاړے، ډب اوبهٔ. (۳) داغ، تور، تهمت ـ

**ـــ لګول** :ـ اِص، تور لګول، تهمت تپل ـ

**ـــ لګېدل** :ـ اِص ،تهمت لګېدل، په چا تور ورتپلے کېدل ـ

**ـــ وروړل** :ـ اِص، (۱) ډب شـوې اوبـهٔ چاتـه رسـېدل. (۲) پـه خپـل مقصـد کښـې ناکامه کېدل

**ډم** :ـ (ډَ+مْ) [پ (سو) اِس ، مذ]، د لولکو یو قسم چې د نورو نه لږ غټ وي ـ

**ډمام کوری** :ـ (ډَ+ما+م+کُو+ر+ی) [پ (سو) اِس ، مؤ]، وره ډمامه ـ

**ډمامه** :ـ (ډ+ما+مـه) ، [اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـؤ، وا ، ج: ډمـامې]، کنـده چـې اوبهٔ پکښې جمع کېږي ـ

**ډمامه** :ـ (ډ+ما+مه) [پ ، اِس ، مؤ، وا ، ج: ډمامې]، (۱) نغاره. (۲) مشهوري ـ

مـرد و زن عرب عجم دې ثنا خوان دي
په هر ملک کښې ستا د دور ډمامه ده (عبدالعظیم)

(۳) ډډ ، پړسېدلے ـ

**ډمامه ـ غړول** :ـ اِص ،نغاره کول، د چغې ډول غړول ـ

**ـــ کېدل** :ـ اِص، (۱) نغاره غړېدل. (۲) پړسېدل ـ

**ډمامي** :ـ (ډ+ما+ميْ) [اَف:پ (قـاموس) ص ]، مرامـي، هغـه اوبـهٔ چې ډېرې ورو ورو بهېږي او خلقوته ولاړې ښکاري ـ

**ډمباز** :ـ (ډ+م+بـا+ز) [پ ، اِس ، ص ، مـذ]، ډمبـوز، پـه ښـکلي ډم مئېن، نشـې تماشې خوښوُونکے ـ

**ډمبازي** :ـ (ډم+با+زيْ) ، [پ ، اِس ، مؤ]، ډمان خوښونه، د ډمانو د تماشو شوق

**ډمبر** :ـ (ډَ+مْ+بَ+رْ)، [پ ، اِس ، مذ]، (۱) سوُر بمبر، د بمبرې یـا غُومبسـې نر. (۲) په وهلو وهلو شین پړسېدلے ـ

**ډمبر** :ـ (ډَ+مْ+بَ+رْ) [پ ، اِس ، مذ]، دلۍ، ډېرے، انبار، یو بل د پاسه پروت ـ

**ډمبرګۍ** :ـ (ډَمبر+ګ+ی) [پ (اورک) اِس ، مؤ]، ډمبره، غُومبسـه، بمبره، سره مچۍ ـ

چېرته تن او چېرته من په درداخته دے
ډمـــبرګۍ دي اختـــه شـــوې پـــه نبات (صادق الله ورکزے)

**ډمبرګلے** :ـ (ډَ+مْ+بَ+رْ+ګُ+لے) [اَف:پ (قاموس) اِس ، مذ]، د زېړ ګُلاب ګُل ـ

**ډمبـره** :ـ (ډَ+مْ+ب+ره) [پ ، اِس ، مؤ، وا ، ج: ډمبـرې]، بمبـره، سرهٔ مچۍ، غُومبسه ـ

**ډمبـره** :ـ (ډَ+مْ+بَ+ره)، [پ ، اِس ، مـؤ ، وا ، ج: ډمبرې]، ډنبره، یـوه غرئیـزه ازغنه ونه چې لرګے ئې غُوټې غوټې وي او تخم ئې لکه د تـورو مرچـو پـه شان وي ـ

محتسب دې څنې لرې لرې ګرځي
مست خوشحال څخه کوتک دے د ډمبرې

**د ډمبرې لرګے** :ـ اِص ،فسادي، جنګیالے بنیادم ـ

**ډمبرې کول** :ـ اِص ،څوک ښهٔ وهل ټکول ،په وهلو پُولۍ پُولۍ کول ـ

**ډمبرے** :ـ (ډَ+مْ+ب+رَے) [اَف:پ (قاموس) ،اِس ، مذ]، یو قسم دوائي ـ

**ډمبـرې** :ـ (ډ+مْ+بَ+رې)، [پ (اش) اِس ، ج]،د ډمبـرې تخـم، د مرچـو پـه شـان تورې دانې چې د تُرشۍ د پاره د خوراک په څیزُونو اچلولے شي ـ

ډمبرې خورم خُوله مې مېرې شوه
اوس د کمودو خوراک خوند نهٔ راکوینه (ټپه)

**ـــ اچول** :ـ اِص ،د خوراک په څیزُونو ډمبرې دُوړول ـ

**ډمبرې ـ دُوړول** :ـ اِص، و ـ ډمبرې اچول ـ

**ډمبـو** :ـ (ډَ+مْ+بـو) [اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـؤ]، پـه سـېند کښـې د زنانـهٔ مخصوصه لامبو

**ډمبوری** :ـ (ډَ+مْ+بو+ر+ی) [پ (ب،خ) اِس ، مؤ]، دونکاچه، هغـه د خـاورو او ګټو نـه جوړه ډبـه چې نمونځ پرې کولے شي او په ځینې ځایونو کښې منګې پرې کېښېښولے شي ـ

**ډمبوز** :ـ (ډَ+مْ+بو+زْ)، [پ (بنو) اِس ، ص ، مذ]، و ـ ډمباز ـ

**ډمبه** :ـ (ډَ+مْ+بَه) [اَف:پ (قاموس) اِس ، مؤ ، ج: ډمبې]، ببلچه، چاري ـ

**ډمبهار** :ـ (ډَ+مْ+ب+ها+رْ) [پ ، اِس ، مذ]، پرله پسې د ډولکي آواز ـ

**ډمتوب** :ـ (ډم+تو+بْ)، [پ ، اِس ، مذ]، (۱) دَ ډم کار، ډمتیا. (۲) سپک کار

**ډمتوره** :ـ (ډ+مْ+تُو+رَه)، [اَف:پ (قاموس) اِس ، مؤ]، یو قسم دوائي ـ

**ډمتیا** :ـ (ډ+مْ+تَ+یا)، [پ ، اِس ، مؤ]، و ـ ډمتوب ـ

**ډمـداره** :ـ (ډ+مْ+ډا+رَه) ، [پ (سـو) اِس ، مـؤ ، او ، ج: ډمـدارې]، ډمبره، تـوره غُومبسه ـ

**ډملمې** :- (ډَ+مْ+ډ+مَے) اپ (ظفر) اس ، مذ ، وا ، ج: ډملمې] ، يو خړرنګې مرغۍ چې لکۍ ئې سپينه او مرۍ ئې توره وي .

**ډملېل** :- (ډَ+مْ+ډي+لْ) ، اپ ، اس معرفه] ، په قطبي وزيرستان کښې د يو ځاے نُوم چې د غازيانو او فېرنګيانو په مېنځ کښې ډېر زورور جنګ په کښې شوے وو .

**ډم ګوچے** :- (ډم+ګوْ+چے) اپ ، اس ، تصغير] ، ورکوټے ډم ، ډمګے .

**ډمګے** :- (ډ+م+ګے) ، اپ (ب،خ) اس ، مذ ، وا ، ج: ډمګي] ، د سرو مچو ګګ يا ګبين

**ډم ګے** :- (ډ+مْ+ګے) اپ ، اس ، تصغير ، مذ ، (مؤ: ډمه ګۍ)] ، و - ډم ګوچے .

**ډمول** :- (ډَ+م+و+لْ) ، اپ ، مص متا] ، اوبۀ ډب کول ، اوبۀ ډنډ کول .

**ډمونه** :- (ډَ+م+و+نهَ) اپ ، حمص] ، اوبۀ ډب کونه ، اوبۀ ډنډ کونه .

**ډمووُنکے** :- (ډَ+م+وُو+نْ+کے) اپ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: ډمووُنکي ، مؤ: ډمووُنکې] ، اوبۀ ډب کوُونکے ، اوبۀ ډنډ کوُونکے .

**ډمه** :- (ډ+مه) اپ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ډمې ، ډمانې] ، (۱) د ډم ښځه ، هغه زنانه چې د ګډانڅا او سندرو وئيلو کار کوي . (۲) نايڼه ، د نائي ښځه .

پکښې زړۀ د خوار خوشحال دے چې خوړ نۀ شي

ډمې ورو ورو د شهۍ زلفينې نموژه

**ډمې ګډول** : اص ، د ډمو تماشه جوړول ، د ډمو د نڅا ګډا او سندرو محفل جوړول

**د ډمې کټ** : اص ، داسې څيز چې اعتبار پرې نۀ شي کېدے ، داسې شے چې هر څوک ئې ځان حقدار ګڼي .

**ډمې** :- (ډ+مې) [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ] ، د هلکانو يو لوبه .

**ـــ کول** :- اص ، د ډمې لوبه کول .

**ډمېدل** :- (ډَ+مې+د+لْ) [اَف:پ (قاموس) مص لا] ، اوبۀ ډب کېدل ، اوبۀ ډنډ کېدل .

**ډمېدنګ** :- (ډَ+مې+دَ+نْ+ګْ) [اَف:پ (قاموس) ، حمص] ، ډمېدنه ، اوبۀ ډب کېدنه ، اوبۀ ډنډ کېدنه .

**ډمېدُونکے** :- (ډَ+مې+دُو+نْ+کے) [اَف: پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ډمېدُونکي ، مؤ: ډمېدُونکې] ، اوبۀ ډب کېدُونکے ، اوبۀ ډنډ کېدُونکے .

**ډمبره** :- (ډ+مې+ره) [اَف: پ (قاموس) اس ، مؤ] ، ډمبره ، بمبره ، غوُمبسه .

**ډنبره** :- (ډَ+مْ+بَ+ره) اپ ، اس ، مؤ] ، يو قسم وُنه ، و - ډمبره .

**ډنټ** :- (ډ+نْ+ټْ) [اَنګ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ډنټوُنه] ، چاپ ، خاپ ، ورننه وتې حصّه .

**ډنډ** :- (ډَ+نْ+ډْ) اپ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ډنډوُنه] ، (۱) ډنډاؤ ، ولاړې اوبۀ ، تالاؤ .

د وينو ډنډ چې مې په زړۀ کښې سيلاُبونه جوړ کا

زمـــا د خُولې نــــه بې اختياره فريادونه اُوځي (پرېشان خټک)

(۲) شين کڅ . (۳) د ائينې شيشه ، د ائينې مخ . (۴) نقصان ، تاوان . (۵) شور زوږ

**ـــ اچول** :- اص ، شور زوږ جوړول .

**ـــ کېدل** :- اص ، (۱) اوبۀ اُودرېدل . (۲) تاوان کېدل .

**ـــ کول** :- اص ، (۱) اوبۀ ډب کول . (۲) څۀ څيز په چا تاوان کول .

**ډنډا** :- (ډَ+نْ+ډا) ، [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ] ، ډنډوره ، نغاره .

**ډنډا** :- (ډَ+نْ+ډا) ، اپ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ډنډې] ، لوړ ، کوتک .

**ډنډاپ** :- (ډَ+نْ+ډا+پْ) ، اپ ، اس ، مذ] ، ډنډاس ، ډانډت ، ډغ .

**ډنډاره** :- (ډَ+نْ+ډا+رَه) ، اپ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ډنډارې] ، (۱) ډنډر ، ډډ . (۲) بمبره ، غوُمبسه ، سره مچۍ . (۳) غټ بنيادم ، پرسېدلے بنيادم ، ځورب سړے

**ډنډاس** :- (ډَ+نْ+ډا+سْ) اپ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ډنډاسُونه] ، و - ډنډاپ .

**ډنډاکے** :- (ډَ+نْ+ډا+ کے) [اَف: پ (قاموس) اس ، مذ] ، د پټُون د وېخ هډوکے ، د کوناټې غونډ هډُوکے .

**ډنډالے** :- (ډَ+نْ+ډا+لَے) ، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ] ، ډنډورچي ، نغاره کوُونکے ، ډنډوره غږوُنکے .

**ډنډامار** :- (ډنډا+ما+رْ) اپ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: ډنډاماران] ، کوتک مار ، کوتک چلوُونکے ، بد معاش .

**ډنډاماري** :- (ډَنډا+ما+رِيْ) اپ ، اس ، مؤ] ، کوتک ماري ، د کوتک نه کار اخستل ، بد معاشي .

**ډنډاو** :- (ډَ+نْ+ډا+وْ) [اَف: پ (قاموس) اس ، مذ] ، و - ډنډ .

**ډنډر** :- (ډ+نْ+ډ+رْ) ، اپ ، اس ، مذ] ، (۱) ډنډه ، ډانډے ، ډکے ، غندل .

نن مې يو درې څانګې ولاړې د ډندر د پاسه

چې د تيراه هـوا پرې راشي واړه زانګې رېږي (پرېشان خټک)

(۲) د پېزوان مېخکے .

**ډنډساغري** :- (ډَ+نْ+ډ+سا+غْ+رِيْ) اپ ، اس معرفه] ، د کوهاټ په ضلع کښې د شکردرې په علاقه کښې د ساغرې خټکو يو کلے .

**ډنډ عيدل خېل** :- (ډنډ+عي+دَ+لْ+خې+لْ) اپ (ب،خ) اس معرفه] ، د کرک په ضلع کښې د بارکو خټکو يو کلے .

**ډنډغر** :- (ډَ+نْ+ډ+غ+رْ) [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ] ، کنګر ، ټانګر ، د ځاروو نه پاتې شوې ټاټې .

**ډنډکے** :- (ډَ+نْ+ډ+کے) [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ] ، بټه ، ګوړه او کروُت .

**ډنډګلے** :- (ډَ+نْ+ډ+ګُ+لے) [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ډنډګُلي] ، د برسنډے ګُل ، د نيلوفر ګُل .

**ډنډوره** :- (ډ+نْ+ډو+رَه) اپ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ډنډورې] ، نغاره .

**ـــ کول** : اص ، (۱) ډنډوره وهل ، نغاره کول . (۲) مشهورول . (۳) شرمول .

**ـــ ګرځول** : اص ، د څۀ څيز اعلان کول ، څۀ څيز مشهورول .

**ـــ وهل** :- اص ، و - ډنډوره کول .

**ډنډورچي** :- (ډنډوره+چي) ، اپ ، اس ، ص ، مذ ، وا ، ج: ډنډوره چيان] ، نغارچي ، ډنډالے ، ډنډوره کوُونکے .

**ډنډُورے** :- (ډَ+نْ+ډُو+رے) [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ] ، د انګور ګوچه يا غُنچه

**ډنډوغل** :- (ډَ+نْ+ډو+غ+لْ) اپ (اَش) اس ، مذ] ، د هلکانو يو لوبه .

**ډنډوکاري** :- (ډَ+نْ+ډُو+کا+رِيْ) اپ ، اس ، مؤ ، ج] ، چغې ، نارې سورې ، دنُدوکارې .

**ـــ وهل** : اص ، چغې سُورې کول .

**ډنډوُکے** :- (ډَ+نْ+ډُو+کے) ، اپ ، اس ، تصغير ، مذ ، وا ، ج: ډنډوکي] ، د اُوبو ورکوټے ډنډ ، تالاب ګوټے .

وسيلاب ته د ډنډوُکي څۀ حاجت دے

زړۀ چې ژاړي سترګې څرنګ ژړا نۀ کا (رحمٰن)

**ډنډول** :- (ډَ+نْ+ډ+و+لْ) ، اپ ، مص متا] ، (۱) ډمول ، اوبۀ ايسارول ، اوبۀ ډنډ کول . (۲) په چا څۀ څيز تروټه کول .

**ډنډونه** :- (ډَ+نْ+ډ+و+نهَ) ، اپ ، حمص] ، (۱) اوبۀ ډنډ کونه ، اوبۀ ايسارونه . (۲) په چا څۀ څيز تروټه کونه .

**ډنډووُنکے** :- (ډَ+نْ+ډ+وُو+نْ+کے) اپ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: ډنډووُنکي ، مؤ: ډنډووُنکې] ، (۱) اوبۀ ډنډ کوُونکے ، اوبۀ ايساروُنکې . (۲) په چا څۀ څيز تروټه کوُونکے .

**ډنډه** :- (ډَ+نْ+ډه) اپ ، اس ، مؤ ، وا ، ج: ډنډې] ، د اوبو ډنډ .

مينه ماتــه کړي توبه د سلو کالو
د سيلاب له مخه اُوبهيږي ډنډه (حميد)

**ډنډې اچول**:-اص، د اُوبو د ايسارولو يا ډب کولو د پاره پشتې جوړول.

**ډنـډه** :- (ډَ+نْ+ډَه)، [اپ ، اس، مؤ، وا ،ج: ډنډې]، (۱) کوتـک.(۲) د تـېلې ډانډے يا ډنډۍ.(۳) د بُوټي غندل.(۴) ډډ لرګے.(۵) چوګان، پولو.

**ډنـډه کېلـک**:-(ډَ+نْ+ډه+کَـې+ل+کْ) [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـذ]، (۱) د چوګان يا پولو لوبه.(۲) د ماشومانو لوبه چې ډېرهم ورته وائي.

**ډنډۍ**:- (ډَ+نْ+ډ+ۍ) [اپ ، اس ، مؤ]، (۱) د تېلې لرګے.(۲) د غـوږ پـوښکے يا پيښکے.

**ـــ وهل**:- اص ،په تول کښې ټګي کول، کم تلل.

**ډنډېدل**:- (ډَ+نْ+ډې+د+لْ) [اپ ، مص لا، ډمېدل، اوبهٔ ډب کېدل.

**ډنډېدنــه**:- (ډَ+نْ+ډې+د+نــه ) [اپ ، حمص] ،ډمېدنــه، اوبــهٔ ډب کېدنــه، ډنډېدهٔ.

**ډنډېدُونکے**:- (ډَ+نْ+ډې+دُوْ+نْ+کَے) [اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ډنډېدُونکي، مؤ: ډنډېدُونکې]، ډمېدُونکے، ډب کېدونکے بهٔ.

**ډنډېدهٔ**:- (ډَ+نْ+ډې+ده )[اپ ، حمص]،و- ډنډېدنه.

**ډنـډيې** :- (ډَ+نْ+ډ+ئيې)، [اَف:پ (قـاموس) اس]، هغـه اَس چـې د ضـروت د پاره د ګاډي يا ټانګې د بانس نه بهر تړلے شوے وي او د ضرورت په وخت په ګاډي کښې جوت کولے شي.

**ډنګ** :- (ډ+ن+ګْ) [اپ ، اس ، صو ، مذ]، (۱) د تيز اَواز، ډرت، ټرت.(۲) د ډولکي اَواز.

**ډنګ** :- (ډَ+نْ+ګْ) [اپ ، فا: دنګ ، ص ، مذ ، (مؤ، وا: ډنګه ، ج: ينګې] اَريان دريان، حېران، اَق دق.

وارهنــډے وته ډنګ په سجده پرېوت
په دا حال کښې د عالم په نظر کښېوت (خوشحال)

**ډنګا**:-(ډَ+نْ+ګا)، [اپ ، اس ، صو ، مؤ]، ډنګها، پرله پسې د نغارې اَواز

**ډنګار**:-(ډَ+نْ+ګا+رْ) [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، د دارو دُرملو يو بُوټے ،

**ډنګالۍ**:-(ډ+نْ+ګا+ل+ۍ) [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ]، تکه.

**ډنـګ ډنـګ**:-(ډَ+نْ+ګْ+ډَ+نْ+ګْ) [اپ ، اس ، صـو ، مـذ]، (۱) د ډول اَواز، تماشه.

بېهوده ئې زړهٔ ترې په ډنګ ډنګ پورې
د ګـــــړۍ مېلمنـــه وراده دا دنيـــــا (حميد)

**ډنګ ډُونګ**:-(ډَ+نْ+ګْ+ډُوْ+نْ+ګْ) ، [اپ ، اس ، صو ، مذ]،و- ډنګ ،ډنګ

**ـــ جوړول**:-اص ،تماشه کول، په خوشحالۍ کښې ډُولونه غږول.

**په ډنګ ډُونګ**:-اص ،په درز دُروز، په خوشحالۍ، په ډول په سُرنا.

**ډنګـــر** :- (ډ+نْ+ګَ+رْ) [اپ ، ص ، مــذ ، (مـؤ، وا: ډنګــره ، ج: ډنګــرې]، (۱) څاروے، څناور.

چې نــــه مهـــــر مـحبت لــري نــهٔ مالګه
سپين ډنګر دے په خُوبانو حساب نهٔ دے (علي خان)

(۲) کمزورے، مانده، تپ.

کله خورب شېله باده
کله بيا پــه هېڅ ډنګر (خوشحال)

**ډنګر که**:- (ډَ+نْ+ګ+رَ+کَه) [اَف:پ (قاموس) اس ، تصغير، مؤ ، وا ، ج: ډنګرکې]، (۱) د ډنګر اسم تصغير، ډنګرګوټے.(۲) وتره.

**ډنګر ګوټـــے**:-(ډَ+نْ+ګ+رْ+ګــو+ټےَ) [اپ ، اس، تصـــغير، مـــذ ، وا ، ج: ډنګرګوټي]، ورکوټے څاروے، ورکوټے څناور، ډنګرکے، نګرے.

**ډنګرے**:- (ډ+ن+ګ+رَے) [اپ ، اس ، تصغير، مذ، وا ، ج: ډنګري ، مؤ: ډنګرۍ]، (۱) و- ډنګر ګوټے.(۲) د فصل د ټکولو او صفا کولو ډېلے

**ډنګوټـے**:- (ډ+نْ+ګـو+ټَے)، [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـذ]، د جـولاد تنسـتے ربلے.

**ډنګ وډُونګ** - (ډَ+نْ+ګْ+و+ډُوْ+نْ+ګْ)، [اپ،اس ،صو،مذ] ،و- ډنګ ډُنګ

**ډنګول**:- (ډ+نْ+ګ+و+لْ)، [اپ ، مص مت]، ډول غږول، نغاره کول، رباب ټنګول

**پرې خپل سرډنګول**:- اص ،بغېر د چا د صلاح مشورې نه کار کول،خپله کول د بل نهٔ اورېدل.

**ځان ځان ته ډنګول** :- اص، خپل خپل کارکول، بې اتفاقي کول، بل چاته غوږ نهٔ کښېښودل.

**ډنګولے**:- (ډ+نْ+ګ+و+لَے)، [اپ ، مف ، مذ ، ج: ډنګولي ، مؤ: ډنګولې]، نغاره يا ډول وغېره غږولے.

**ډنګونه**:- (ډ+نْ+و+نهَ)، [اپ ، حمص]، نغاره يا ډول وغېره غږونه.

**ډنګووُنکے** :- (ډ+نْ+ګ+وُوْ+نْ+کَے)، [اپ ، فـاع ، مـذ ، وا ، ج: ډنګـوُنکي، مؤ: ډنګوونکې]، نغاره يا ډول وغېره غږونه.

**ډَنګه**:- (ډَ+نْ+ګَه) [اپ، (کن) اس ، مؤ، وا ، ج: ډنګې]، هغـه پړے يـا رسۍ چې د لوشلو په وخت د غوا روستۍ پښې پرې تړلے شي.

**ـــ اچول**:-اص، (کن) د لوشلو په وخت د غوا روستۍ پښې په رسۍ تړل.

**ډنګهـار**:-(ډ+نْ+ګ+هـا+رْ) [اپ ، اس ، صـو ، مـذ]، د نغـارې يـا ډول پرلـه پسې اَواز

**ډنګېدل**:- (ډ+نْ+ګې+د+لْ)، [اپ ، مص لا]، د نغارې يا ډول غږېدل.

**ډنګېـدلے** :- (ډ+نْ+ګـې+د+لَے)،[اپ ، مـف ، مـذ ، وا ، ج: ډنګېـدلي ،مـؤ: ډنګېدلې]،نغاره يا ډول غږېدلے.

**ډنګېدنه**:- (ډ+نْ+ګې+د+نهَ) [اپ ، حمص]، ډنګېدهٔ، نغاره يا ډول غږېدنه.

**ډنګېدُونکے** :- (ډ+نْ+ګې+دُوْ+نْ+کَے) ،[اپ ، مف ، مذ، وا ، ج: ډنګېدُونکي ،مؤ: ډنګېدوُنکې]، نغاره يا ډول غږېدُونکے.

**ډنګېدهٔ**:- (ډ+نْ+ګې+ده)، [اپ ، حمص]، و- ډنګېدنه.

**ډنګـــې ډوال** :- (ډَ+نْ+ګــې+ډْ+وا+لْ)، [اَف: پ (قـاموس) مـذ]، ويړيپـــړ، خلاص، ببرته کړے، بکه خُوله.

**ډنګيـر** :- (ډَ+نْ+ګِي+رْ) [اپ (اورک) اس ، مـذ]، بـد څنـاور، سُور، خنزير، سرکُوزے، سرټيټے.

**ډنه**:- (ډ+نه)، [اَف: پ (قاموس) اس ، مؤ]، متيزه، تښتېدلې ښځه.

**ـــ تلل** :- اص، متيزه کېدل، د ښځې چا سره تلل، ډنه کېدل.

**ـــ کېدل** :- اص، و- ډنه تال.

**ډو** :- (ډَ+وْ)، [اس ، مـذ]، (۱) د تيـز اَواز.(۲) د کارغـهٔ د شـړلو اَواز.(۳) کم عقل بنيادم.(۴) درُوچې (سو).

**ډُوب** :- (ډُوْ+بْ) [اپ،ص،مذ ،(مؤ، وا: ډُبه ،ج: ډوبې]، غرق، غوپه شوے

دواړه لاس ئې وي لــه دواړه کونه وللې
ډُوب وي تل د عاشقۍ په لوئې امواج (رحمٰن)

(۲) په فکر کښې سرګوم ، فکرمن، اريان.

ګرفتار ئې همېشه په غم کښې ډوب وي
هېڅــوک مـــه شـــه ګرفتار د دې دنيا (رحمٰن)

**ـــ بوول** :- اص ،ښهٔ نسکورول، ربړزول، د واره سره راپرزول.

**ـــ تلـل** :- اص، (۱) بېهوشـه کېـدل.(۲) حريانېـدل، فکرمـن کېـدل.(۳) پـه اوبو کښې پټه لاهبو وهل.

هسې ډوب لاړم د مينې په درياب کښې

چې مجنون راتــــه ښــکاره شه سرسري (حميد)

ـــــ **ورته تلل** :ـ اِص ،حېرانېدل-

ـــــ **وړل** :ـ اِص ،ډرول، غوول ـ

**په غم کښې ډُوب**:ـ اِص، ډېر زيات غمژن ،په فکرونوکښې راګېر ـ

چې دې سرتړپايه درست په غم کښې ډُوب کړم

راته وائي اوس خوشحال اوسه څۀ غم کړې

**ډُوبه بېړۍ راکښل**:ـ اِص ،د چاه کېدوُنکے کار ترسره کول ،ډېره زړه خبره سرته رسول ـ

**ډُوباغــانِي** :ـ (ډُو+با+غـا+نِيْ)، اِپ (ب،خ) اِس ، مـؤ]، خربـاز، بـازيګره، بازينګړه، سُولکے، خربُوزانِي ـ

ـــــ **اَړول**: ـ (ب،خ) اِص ،خربـازي کـول، بـازيګرې اَړول، سُـولکے کـول، خربوزانِي اَړول ـ

**ډُوباک** :ـ (ډُو+با+کْ)، [اِپ (ب،خ) اِس ، مذ]، هغه پړے چې د اُوښ پښـه او ګيندړه پرې تړلې شي ـ

**ډُوبډوبي**:ـ (ډُوْ+بْ+ډُوْ+بِيْ) [اِپ ، اِس ، ص ، مؤ]، ډُوبېدُونکے څيز ـ

**ډُوبــره** :ـ (ډُوْ+بَ+ره )، [اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـؤ، وا ، ج: ډُوبـرې]، يـو غرئيز بُوټے چې غټې پلنې، ګنې ګورې پاڼې لري ـ

**ډُوبلک** :ـ (ډُوْ+بْ+ل+کْ)، [اَف:پ (قاموس) اِس ، مذ]، ډوبله، ډُوبلن، هغه اَس چې په هوار رفتار نۀ ځي او په ډک ډک ځي ـ

**ډُوبلـن** :ـ (ډُوْ+بْ+ل+نْ)، [اَف:پ (قـاموس) اِس، مـذ ، (مـؤ، وا: ډُوبلنـه ، ج: ډُوبلنې]، و- ډُوبلن ـ

**ډُوبله** :ـ (ډُوْ+بْ+له ) [اَف:پ (قاموس) اِس ، مؤ]، و- ډُوبلک ـ

ـــــ **وهل** :ـ اِص ،د اَس په ناهموار قدم تَلل، ډُوبله ويشتل ـ

ـــــ **ويشتل** :ـ اِص، و- ډُوبله ـ

**ډُوبلــي**:ـ (ډ+و+ب+لـي)، [اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ،ج: ډَوبلـي]،د پهلوانۍ او د کسرت کولو ډبلۍ ـ

**ډُوب مــاکو** :ـ (ډُوْ+بْ+مـا+کُوْ) ،[اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـذ ، وا ، ج: ډُوب ماکوګان]، اَبدوزه کشتۍ ـ

**ډُوبنے** :ـ (ډُوْ+ب+نَے)[اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـذ]، د اوبـو ژوروالے، ډُوب والے ـ

**ډُوب والے** :ـ (ډُوْ+بْ+وا+لَے)، [اِپ ، اِس ، مذ]، و- ډُوبنے ـ

**ډُوبول** :ـ (ډُوْ+ب+وا+لْ)[اِپ ،مص مت]، (۱) غرقول، غُوپه کول.(۲) توانـول، نقصا نول

ډوبــــوي پـــــه خپله ځان حاکم د عقل

چې د عشق د ملک خراج نۀ لري شوق (حميد)

(۳) پرزول، رانسکورَول.

**ډُوبونــګ** :ـ (ډُوْ+ب+و+نْ+ګْ)، [اَف:پ (قـاموس) حمـص]،(۱) ډُوبونــه، غرقونه، غُوپه کونه.(۲) تاوان ورکونه، نقصـان ورکونـه.(۳) پرزَونـه، نسکورَونه ـ

**ډُوبونه** :ـ (ډُوْ+ب+و+نَه)، [اِپ ، حمص]، و-ډُوبونګ ـ

**ډُوبوُونکے** :ـ (ډُوْ+ب+وُوْ+نْ+کَے)، [اِپ ، فاع ، مذ ،وا ، ج: ډُوبوُونکي ، مؤ: ډوبوونکې]، (۱) غرقـووُنکے ،غوپـه کـووُنکے.(۲) تـاوان ورکـووُنکے، نقصان ورکوونکے.(۳) پرزوُونکے، رانسکوَروُونکے ـ

**ډُوبې** :ـ (ډُو+ب+ې)، [اَف:پ (قاموس) اِس ،مؤ]،(۱) د ولې پـه خوا کښـې هغه ورکوټے تالاؤ چې سر ئې بندوي او اوبۀ پکښـې يخـوي.(۲) ګـوډ ګـوډک ـ

ـــــ **وهل** :ـ اِص، ګوډ ګوډ تلل، ګوډ ګوډک وهل، په ارګوډي تلل ـ

**ډُوبے** :ـ (ډُو+بَے) [اَف:پ (قاموس) اِس ، مذ]، د نسواروکندو، بلاغونډ ـ

**ډوبي** :ـ (ډو+بِيْ)، [اَف:پ (قاموس) اِس ، مذ]، دوبي ـ

**ډُوبېدل**:ـ (ډُوْ+بې+د+لْ) اِپ ، مص لا]، (۱) غرقېدل، غُوپه کېدل ـ

په رودنيل کښې فرعونانو خرخشے کولې

نۀ پوهېدل نۀ سمبېدل نۀ غرقېدل ډوبېدل (پرېشان خټک)

(۲) تاوانېدل، نقصان کېدل.(۳) پرزولے کېدل، رانسکورېدل ـ

**په ګوټ اوبـو کښې ډُوبېدل** :ـ اِص، پـه معمـولي قيصـه پرېسېدل، پـه نـه څۀ خبره ځان خفه کول ـ

**ډُوبېــدنګ** :ـ (ډُوْ+بـې+دَ+نْ+ګْ)، [اَف: (قـاموس) حمـص]، (۱) ډُوبېدنــه، ډُوبېدۀ، غرقېدنه، غُو کېدنه.(۲) تاواني کېدنه، نقصان کېدنه.(۳) پرزولے کېدنه، رانسکورېدنه ـ

**ډُوبېدنه** :ـ (ډُوْ+بې+د+نَه)، اِپ ، حمص]، و - ډُوبېدنګ ـ

**ډُوبېدُونکے** :ـ (ډُوبې+دُوْ+نْ+کَے) ، اِپ ، مف مذ ، وا ، ج: ډوبېدُونکي، مؤ: ډُوبېــدُونکې]، (۱) غرقېــدونکے، غوپــه کېــدُونکے.(۲) تــاواني کېــــدُونکے، نقصــــان کېــــدُونکے.(۳) پـــــرزولے کېــــدُونکے، رانسکورېدوُنکے ـ

**ډوبېدۀ** :ـ (ډُو+بې+ده )، [اِپ ، حمص]، و - ډُوبېدنګ ـ

**ډُوبې ډُوبيا** :ـ (ډُو+بې+ډُو+بْ+يا )، [اِپ ، کلمه]، (۱) خاموشي.(۲) بېخي ورک، بې پتې لګتې ـ

ـــــ **کېـدل** :ـ اِص ،(۱) خاموشـه کېـدل، شـورزوږ نـۀ راتلـل.(۲) بيخـې ورکېدل، څۀ پته لګته نۀ لګېدل ـ

**ډوتته** :ـ (ډو+ت+تَه )، [اِپ (سو) اِس ، مؤ]، ډغره، تګه، تکه ـ

**ډُوډ** :ـ (ډُوْ+ډْ)، [اَف:پ (قاموس) اِس ، مذ]، ډوډه، د برسنډې ګل ـ

**ډُوډ**:ـ (ډُوْ+ډْ) [اِپ (ب،خ) اِس ، مذ]، ډُوډے ،د کوناټې د سرهډُوکے ـ

**ډُوډا**:ـ (ډُوْ+ډا+)، [اَف:پ (قاموس) اِس ، مؤ]، يو قسم بُوټے.(۲) ډوډه، لاډُو

**ډُوډزنــي** :ـ (ډُوْ+ډ+زَ+نـي) [اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـؤ]، ډُوډزي، ډډُوزې، تېر او ډېر سخا بوئي ـ

**ډُوډزه**:ـ (ډُو+ډ+زه )، [اَف:پ (قـاموس) اِس، مـؤ ، وا ، ج: ډُوډزې]زيــات لُوګے ـ

ـــــ **اچول** :ـ (اَف) اِص، زيات لُوګے کول ـ

**ډُوډزي** :ـ (ډُوْ+ډ+زِيْ)، [اَف:پ (قاموس) اِس، مؤ ، ج]، تېز بُوي ـ

ـــــ **تلل** :ـ (اَف) اِص ، ډُوډزي ولاړېدل، تېز او سخا بوئي تلل ـ

**ولاړېدل** :ـ (اَف) اِص ،و - ډُوډزي تلل ـ

**ډُوډنډه**:ـ(ډُوْ+ډ+نْ+ډَه) [اِپ (ظفر) اِس، مؤ ،وا ،ج: ډُوډنډې]، د ولو مېنځ.

**ډوډه**:ـ (ډو+ډَه)، [اِپ ، اِس ، مـؤ، وا ، ج: ډوډې]،(۱) ډوډا ، د خشخاشـو غوزه .(۲) د جوارو ډوډۍ يا پياځه، ډوډئيې ـ

**ډوډه**:ـ (ډو+ډَه) [اِپ (وز) اِس ، مؤ]، تراړه، دُومه، ډاډا ، دينين، بتې ـ

**ډوډه** :ـ (ډو+ډَه)، ،پ، اِس معرفه]، د کوهاټ سره نزدې يو کلے ـ

هره چپه ورته خاپش ګندب نوښار ډوډه شي

چي کُوم نظام حکومت سبدا اميرخان پېدکا (پرېشان خټک)

**ډوډۍ** :ـ (ډو+ډ+ۍ) ، [اِپ ، اِس ، مؤ]، ډوډۍ، مرۍ، تېکاله ـ

ـــــ **ايښودل** :ـ اِص،مېلمنوته ډوډۍ تيارول، دسترخوان غوړول، د تېکالې مېز برابرول

ـــــ **پخول** :ـ اِص، تېکاله تيارول ـ

ـــــ **ته رابلل** :ـ اِص، چاتـه د تېکالې دعوت ورکـول، ډوډۍ تـه غوښـتل، څوک مېلمه

**ـــــ ته غوښتل** :ـ اص، و -ډوډۍ ته رابلل ـ
**ـــــ خوړل** :ـ اص، تېکاله خوړل، خوراک کول ـ
**ـــــ غوښتل** :ـ اص، تېکاله غوښتل، د ډوډۍ سوال کول ـ
**ـــــ کول** :ـ اص ،دعوت کول، چاته مېلمستيا ورکول ـ
**ـــــ ورکول** :ـ اص، تېکاله يا مړۍ ورکول، سخاوت ورکول ـ
**ډوډۍ څکوُنې** :ـ (ډوډۍ+څ+سْ+ک+وُ+نَې)، [اَف:پ (قاموس) مذ، وا ، ج: ډوډۍ څکوُني]، هغه کېږه يا لته چې تنورچي په لاس راځرخولے وي او تنور نه پخې ډوډۍ پرې راوُباسي ـ
**ډوډۍ غړپ** :ـ (ډوډۍ+غْ+ړَ+پْ)، اپ اس ، مذ ، (مؤ، وا: ډوډي غړپه ، ج: ډوډي غړپې]، خېټه ور، اړواوړے، چُوس مار، لالچي، خېټو ـ
**ډوډۍ کغالے** :ـ (ډوډۍ+کُ+غا+لے)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ ،]، تنور ـ
**ډوډۍ مار** :ـ (ډوډۍ+ما+رْ) ،اپ ، اس، ص، مذ ، (مؤ، وا: ډوډۍ ماره ، ج: ډوډي مارې) ]،سخي بنيادم، هغه څوک چې په خلقو بغېر د څۀ طمع ډوډۍ خوروي ـ
**ډوډۍ والا** :ـ (ډوډۍ+وا+لا)، [اپ ، اس ، ص ،مذ] نانوائي،تنورچي، ډوډۍ پخونکے، نانبائي ـ
**ډُوډے**:ـ (ډُوْ+ډَ ے) اپ ، اس، مـذ ، وا ، ج: ډُوډي] ،(۱) ډُوډ ، د کونـاټي د سر هډُوکے

يو پوه ځوان د سپينې تُورې حق په ځان کا
گني هــريـــو گيـډے اوترې په ډُوډي (خوشحال)

(۲) د ماشومانو يوه لوبه ـ
**ـــــ سترے کېدل**:ـ اص، ډُوډے ماتېدل، ډېز زيات سترے کېدل ـ
**ـــــ ماتېدل**:ـ اص ،(۱) د کوناټي د پاس هډُوکے ماتېدل.(۲) ډُوډے سترے کېدل
**په ډُوډۍ اخستل** :ـ اص ،په ډُوډي کول، په غېږ کښې اخستل، په ترخ کول ـ
**په ډُوډۍ تړل** :ـ اص، په څنگ کښې اخستل، د ځان سره وړل ـ

يو پوه ځوان د سپينې تُورې حق په ځان کا
گـني هـــر يــــو گيـډے اُوترې په ډُوډي (خوشحال)

**په ډُوډي کول** :ـ اص، و - په ډُوډي اخستل ـ
**ډوډي سُولول** :ـ اص، ډېرتنگول، ماشوم ډېرزيات په ډُوډي کول ـ
**ډُوډے** :ـ (ډُو+ډے)، [اَف:پ (قـاموس) اس ،مذ، وا ، ج: ډُوډي]، جاسُوس ، مخبر، پټ خبر ورکوونکے ـ
**ډوډيال** :ـ (ډو+ډْ+يا+لْ)، [اپ ، اس معرفه]، د مانسهرې په ضلع کښې د يو ځاے نُوم
**ډوډي خلاص** :ـ (ډُو+ډِيْ +خْ+لا+صْ)، [اپ ، اس ، ص، مذ ، (مؤ، وا: ډوډي خلاصه ،ج: ډوډي خلاصې]، بېکاره بنيادم، تش ډوډۍ ماتوونکے ـ
**ډوډيئې**:ـ (ډُو+ډِي+ئې) [اپ (بنو) اس ، مؤ]،د جوارو ډوډۍ يا پياځه ـ
**ډور** :ـ (ډو+رْ)[اپ، اس،مذ]، (۱) د سيند په غاړه ځنگل.(۲) غېر اباد ځاے

د تــولي پـــــه مخکښې ځي پــه شين شين
لکه مست هاتي چې يُون کاندي په ډورکښې (خوشحال)

**ډُور** :ـ (ډُو+رْ)، [اپ ، اس ، مذ]، دُوگازه، جال ـ
**ـــــ کول** :ـ اص، جال بُونېل، جال جوړول ـ
**ډورکندے** :ـ (ډور+کَ+نْ+دَ ے)، [اَف:پ (قـاموس) اس ،مـذ]، دورگـټے، گورگټے، گورگښے، غسه ـ
**ډورگټے**:ـ (ډور+گ+ټے) [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، و-ډورکندے ـ
**ډوره** :ـ (ډو+ره )، [اَف:پ (قـاموس) ص ]،شـلېدلے، څېـرې وېـرې، رنجې کنجي
**ـــــ کول** :ـ اص، شلېدل، څېرې وېرې کول، رنجې کنجې کول ـ

**ـــــ کېدل** :ـ اص ،شلېدل،څېرې وېرې کېدل، رنجې کنجې کېدل ـ
**ډورۍ** :ـ (ډو+ر+ۍ)، [اَف:پ (قاموس) اس معرفه]، لحد، قبر ـ
**ډوري** :ـ (ډو+ر+ ئيْ) [اَف:پ (قاموس) اس معرفه]، د قندهار سوېل طرف ته يو درياب ـ
**ډُورے** :ـ (ډُو+رَے)، [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـذ ، وا ، ج: ډُوري]، گرگـه، برلک، ځاروے، د کرکيلې آله ـ
**ډوريا**:ـ (ډو+رْ+يا ) [اپ ، اس ، مؤ]، ډوليا، ډريا، سلاره، يو قسم کپړه ـ
**ډُوز** :ـ (ډُو+زْ)، اپ ، اس ، صو ، مذ]، د تيز آواز ـ
**ډُوزک** :ـ (ډُوْ+ز+کْ)[اپ ، اس ، مـذ ، (مـؤ، وا: ډُوزکـه ،ج: ډُوزکـې]، (۱) ډُوزن، تيزن. (۲) ډُوزې ويشتُونکے، خوشې خبرې کوُونکے ـ
**ډُوزمار**:ـ (ډُوْ+زْ+مـا+رْ)،[اپ ، اس ، ص، مـذ، وا ، ج: ډُوزمـاران(مؤ ، وا: ډُوز مـاره ، ج: ډُوزمـارې]، ډُوزې ويشـتُونکے، خوشـاټـارے، عبث غړېدُونکے، پُوت مار، ډُوزې ـ
**ډُوزماري**:ـ (ډُوْ+زْ+ما+رِيْ) [اپ ، اس ، مؤ]، و-ډُوزې ويشتل ـ
**ډُوزن** :ـ (ډُوْ+زْ+نْ)، [اپ ،اس ، ص ، مذ (مؤ، وا، ډُوزنه ،ج: ډُوزنې]،و- ډُوزک
**ډُوزه**:ـ (ډُوْ+زه ) اپ ، اس ، مؤ، وا ، ج: ډُوزې]، دروغ، خوشې خبره، پُوته
**ډُوزې ويشتل** :ـ اص، پُوتې ويشتل، عبث خبرې کول، بې مطلبه غړېدل، دروغ خبرې کول ـ
**ډُوزے** :ـ (ډُوْ+زَے)، [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـذ ، (مؤ : ډُوزۍ]، ډُوزې ويشتُونکے، ډُوزمار ـ
**ډوسيکۍ** :ـ (ډو+سي+ک+ۍ)، اپ ، اس ، مو] تالۍ، دکابۍ ـ
**ډُوغ** :ـ (ډُوْ+غْ)، [اپ ، اس ، صـو، مـذ]،(۱) د غـاړې تـازه کـول، آواز ،د ټوخي آواز. (۲) تنګ بنيادم، قُولې، شاټوغے، کُروپ، ټوغے ـ
**ډُوغ تلل** :ـ اص ،د بيمارۍ يا بُوډاتوب له کبله په تيټه ملا تلـل ،قُوبے قُوبے تلل ـ
**ډُوغل**:ـ(ډُوْ+غ+لْ)[اَف:پ (قاموس) ، مص مت ]، ټُوخل، ټوخے کول ـ
**ډوغل**:ـ(ډو+غَ+لْ)، [اپ ، اس، مذ، وا ، ج: ډوغلُونه] کنده، ژور ځاے ـ
**ډُوغـن** :ـ (ډُوْ+غ+نْ)، [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـذ ، (مـؤ، وا: ډُوغـنـه ، ج: ډوغنې]، ټوخن، ټوخېدُونکے ـ
**ډُوغول** :ـ (ډُوْ+و+غ+لْ)، [ اَف:پ (قاموس) مص مت]، (۱) ټوخول، ټوخے وروستل. (۲) ملاټيټول يا قُوبے کول ـ
**ډُوغېدل** :ـ (ډُوْ+غـي+د+لْ)، [اَف:پ (قـاموس) مـص لا]، (۱) ټوخېـدل.(۲) ملاټيټېدل، قُوبے کېدل ـ
**ډوق** :ـ (ډو+قْ) ، [اپ (سو) اس ، مذ]، غټ غوز ـ
**ډوک** :ـ (ډُو+کْ)، [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـذ]، (۱) ډکے، خـس، خـار، ازغے، وړه څانگه .(۲) يو خاص قسم ازغيناک بُوټے ـ
**مرغۀ په ډُوک وُچېدل** :ـ (اَف) اص ،(۱) مرغـۍ پـه څانگه وچېدل.(۲) زياتـه يخنې پرېوتل، زيات سـاړه کېدل ـ
**ډُوکـال** :ـ (ډُوْ+کـا+لْ)، [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـذ]، (۱) قحـط سـالي، سُره، وچوبـه، خشـک سـالي، سـوکړه، د سـوکړې کـال.(۲) ناڅـاپي مرگ ـ
**ډُوکره** :ـ (ډُوْ+کْ+رَه ) [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ، وا ، ج: ډُوکرې] ډُوکره، طبله، دبلے
**ډُوکـه** :ـ (ډُوْ+کَـه)، [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـؤ، وا ، ج: ډُوکـې]،(۱) د کجورې گُچه.(۲) د جولاگانو په اصطلاح کښې پـه يـوه تنسـته کښـې پينځۀ تارونه ـ
**ډوکه** :ـ (ډو+کَه )[اَف:پ (قاموس) ه: ، دهوکا ، اس ،مؤ، وا ، ج: ډوکې] (۱)

دوکه ،فریب۔ (۲) غته قاشُوغه ۔

**ډُوکه مار** :۔ (ډُو+کَه+ما+رْ) ، [اَف:پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ،مؤ: ډُوکه ماره] ، دوکه باز ، فریبي ، چلولي ، تګ ۔

**ډُوکے** :۔ (ډُو+کے) [اَف:پ (قاموس) اس ،مذ ، وا ، ج:ډُوکي ] ، ډکے ۔

**پرمخ ډُوکي شنهٔ کېدل** :۔ (اَف) اص، په مخ ږیره راتلل،د ځواني علامې راڅرګندېدل، ځُونډه شنه کېدل ۔

**ډوګ**:۔ (ډُو+ک) [اپ ، اس ، مذ] ، د هډوکو پنجره، ډېرمانده، تش هډوکي

**ډوګـره** :۔ (ډو+ګْ+رَه) ، [اَف:پ (قاموس) ص] ، (۱) خـوارپرک ، غریب۔ (۲) بې اعتباره بنیادم، ډوګره مست۔(۳) بې باکه ۔

**ډوګره ګي**:۔ (ډو+ګْ+ره+ګيْ) [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ] ، بې باکي ۔

**ـــــ کول** :۔ (اَف) اص، بې باکي کول ۔

**ډوګره**:۔(ډو+ګْ+رَه) ، [ه ، اس] ،(۱) د نیپال اوسېدُونکے۔(۲) د ورکوټي قد بنیادم ۔

**ډوګـرے** :۔ (ډو+ګ+رَے) ،[اپ (ب،خ) اس، مـذ ، وا ، ج: ډوګـري] ، هـوار مېدان ګوټے ۔

**ډُوګـل** :۔ (ډُو+ګ+لْ) ،[اَف:پ (قـاموس) اس ، مـذ] ، خفګـان ، خواشـیني، خوابدي، ساډوبے، زړهٔ تنګي ۔

**ډُوګل** :۔ (ډُو+ګَ+لْ) ، اپ (ظفر) اس ، مذ] ، ډېګله، جاله ۔

**ډوګلانـد** :۔ (ډو+ګْ+لا+نْ+دْ) ، [اپ (ظفر) اس ، ص ، مذ] ،هغـه اَس چې پـه ترپکو ځي ۔

**ډُوګله** :۔ (ډُو+ګ+لَه) ،[اپ (ظفر) اس، مؤ، وا ، ج: ډُوګلې ] ، د مرغو جاله ۔

**ډوګول** :۔ (ډُو+ګ+و+لْ) ، [اَف:پ (قاموس) مص مت] ، ویرول، دبکې پرې کول، ډارول، یرول ۔

**ډوګولۀے** :۔ (ډو+ګ+و+لےَ) ، [اَف:پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: دوګولي ، مؤ: ډوګولې] ، ویرولي، ډارکړے، یَرولے ۔

**ډول** :۔ (ډو+لْ) ، [اپ ،ه : ډهـول ،اس ، مـذ ، وا ، ج: ډولُونـه] ،(۱) ډولکے ، د نغارې غړونو الـه، د ګډا نڅا د پاره وهلے کېدُونکے ،په څرمن پټ تش ګوګ غونډلرګے چې د ډنګ ډنګ آواز ترې راوځي ۔

زهٔ چې ستاله غمه ژاړم آه فریاد کړم
د رقیب کره هم ډول ووهم سندرې (رحمن)

(۲) د ارټ ډول۔(۳) د ژرندې د غلې کښېښودلو ځاے ۔

**ـــــ په غاړه کول** :۔ اص ،(۱) ډول څنګ ته اچول۔(۲) خبره مشهورول ۔

**ـــــ په غاړه کېدل** :۔ اص ،د چا څهٔ خبره خلقوته څرګندېدل ۔

له وهلو به ئې شرم څوک پــه څهٔ کا
چې په غاړه شي د مینې ډول دچا (حمید)

**ـــــ څنګ ته اچول** :۔ اص، و - ډول په غاړه کول ۔

**ـــــ سُورے ګوته پکښې اچول** :۔ اص ،(اَف) (۱) د ډول په سُوري کښې ګوتـه ننـه ایسـتل۔(۲) ډیـرې اُوږدې خبـرې کـول، عبث خبـره اُوږدول، ډُول سُورے ګوته پکښې منډل ۔

**ـــــ سُورے ګوته پکښې منډل** :۔ اص، و - ډول سُورے ګوته پکښې اچول ۔

**ـــــ غږول** :۔ اص ،(۱) ډول وهل، ډنډوره کول۔(۲) خبره مشهورول ۔

**ـــــ غږېدل** :۔ اص ،ډول وهلے کېدل، ډنډوره کېدل ۔

خوښ د عشق پـه آه فریـاد اوسـه حمیـده
پــه ســحر ســحر غږیــږي ډول دچــا

**ـــــ وهل** :۔ اص ،و-ډول غږول ۔

ځیني ډول وهي ښادي کا
ځیني ویر کا د خپل ځان (رحمٰن)

**د شرم ډول** :-اص ،بې شرمه سړے۔

**ډول** :۔ (ډو+لْ) ،[اپ ، اس ، مذ] ، پائېدان ،د پښې ایښودو ځاے ۔

**ډول** :۔ (ډَو+لْ) ، [اپ ، اس ، مذ] ،(۱) سینګار ، فېشن، سرڅېره۔(۲) طریقه (۳) د ارټ یوه آله چې غار غار وي ۔

**ـــــ ډَول** :۔ اص، قسما قسم، رنګ رنګ ۔

چې په شاخ ئې ډول ډول مېوې زانګي
لابــه کله د وصــــــال د ونې بُر خورم (خوشحال)

**ډُول** :۔ (ډُو+لْ) ، [اپ ، اس ، مذ] ، ورو ورو، یو خاص چال ۔

**ډولاډنګـه** :۔ (ډو+لا+ډ+نْ+ګـه ) [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـؤ] ،(۱) آلاوو ، د خشک سالۍ او د باران د بندېز په ورځو کښې د باران د غوښتلو یوه لوبه ، رانجهٔ ، غومباکه، تورمخے۔(۲) سست ناراست سړے ۔

**ډولائي**:۔ (ډو+لا+ ئيْ) اپ ، ه: ډُهلائي ، فع] ،(۱) د پېټي د وړلو کار۔(۲) د کوټېلې یا سکارو د یو ځاے نه بل ځاے ته د وړلو کار ۔

**ډولبـره** :۔ (ډو+ل+ب+رَه ) [اَف:پ (قـاموس) اس ، مـؤ ، وا ،ج: ډولبـرې] ،د ژرندې پاسنے پل ۔

**ډول ټکور** :۔ (ډَو+لْ+ټ+کو+رْ) ، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ] ، ډنګ ډُونګ، خوند رنګ ،د ساز وسرود مجلس-

**ډولچه**:۔ (ډو+لْ+چَه) ، اپ ، اس، مؤ، وا ، ج: ډولچې] ، وړوکې بوقه ۔

**ډول ډال**:۔ (ډَوْ+لْ+ډا+لْ) اپ ، ص ، مذ] ، ډول ډیل، هار سینګار ۔

**ډول ډال** :۔ (ډو+لْ+ډا+لْ) اپ (اورک) ص ، مـذ] ، غـار غـار، برغـۍ برغـۍ، سُوړې سُوړې

**ډول ډبلے** :۔ (ډو+لْ+ډ+ب+لَے ) ،[اپ، اس ، مذ ، وا ، ج: ډول ډبلي] ، ډانګ ډبلۍ، د کور سامان، کډه ۔

**ډول ډیل** :۔ (ډَ+و+لْ+ډيْ+لْ) ،[اپ ، ص] ، و - ډول ډال ۔

**ډولک** :۔ (ډو+لَ+کْ) ، [اپ ، اس، مذ ، وا ، ج: ډولګُونه] ، ډولکے، ورکوټے ډول ۔

**ډولکـے** :۔ (ډو+لْ+کَـے) [اپ ، اس، تصـغیر، مـذ، وا، ج: ډولکـي] ، (۱) و- ډولـک (۲) هغـه څیـز چـې د نمـر پـه تـاؤ سـخت شـي۔(۳) ورکـوټے صندوق، صندوقچه ۔

**ډولکـے** :۔ (ډَوْ+ل +کَـے)[اپ ، اس ، ص، مـذ ، (مـؤ: ډولکـۍ)] ، سـینګار کوُونکے ، فېشني ۔

**ډولکي** :۔ (ډو+ل+کيْ) ، اپ ، اس ، ص ، مذ] ، ډول وهُونکے، ډم ۔

**ډولکي مار** :۔ (ډو+لْ+کيْ+ما+رْ) ،[اپ ، اس ، ص ، مذ] ، ډول غږوُونکے، علي ښادي ۔

**ډولکي ماري**:۔(ډو+لْ+کيْ+ما+ريْ) اپ ، اس ، مؤ] ، د ډول غږولو کسب ۔

**ډولـڼ** :۔ (ډو+لَ+ڼْ) ، اپ (ګن) اس ، مـذ] ، ډبلګے ، د سـپینو زرو نـه جـوړ غونډ کالے چې تعویذ پکښې بندولے شي ۔

**ډُولول** :۔ (ډُو+ل+و+لْ) ، اپ ، مص مت] ، ورو ورو بیول یا شړل ۔

**ډُولولے** :۔ (ډُو+ل+و+لَے) ، اپ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ډُولولي، مؤ: ډُولولې] ، ورو ورو بیولے یا شړلے ۔

**ډُولونه** :۔ (ډُو+ل+و+نَه) ، اپ ، حمص] ، ورو ورو بوونه یا شړنه ۔

**ډُولوُونکے** :۔ (ډُو+ل+وُو+نْ+کَے) ، اپ ، فـاع ، مذ ، وا، ج: ډُولولُونکي، مؤ: ډولُونکې] ، ورو ورو بوُونکے یا شړونکے ۔

**ډوله** :۔ (ډو+له) [اَف: پ (قاموس) اس ، مؤ، وا ، ج: ډولې] ، هغـه ډوغـل چې د سیند په غاړه د اوبوله کېله جوړ شوے وي ۔

**ډوله** :۔ (ډو+لَه)[اپ، پن: ډ هولا، اس ، مؤ] ، د پنجابۍ ژبې یوه مخصوصه عوامي سندره ۔

**ډولۍ** :ـ (ډو+ل+ۍ)، [پ ه: ډولي، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ډوليانې]، هغه پالکۍ چې زنانه پکښې د يو ځاے نه بل ځاے ته د وادهٔ په وخت يا هسې وړلے کېږي ـ

**ـــ اوچتول** :ـ اِص، (۱) ناوې په ډولۍ کښې اخستل ، د ناوې ډولۍ روانېدل (۲) د مړه شوې زنانه جنازه اوچتول ـ

**ـــ په اُوږه کول** :ـ اِص، ډولۍ اوچتول، ډولۍ پورته کول، ډولۍ روانول ـ

**ـــ ډولۍ کېدل** :ـ اِص، په مزه مزه تلل، اخوا دېخوا کېدل ـ

**ـــ راوړل** :ـ اِص، ناوې راوړل ـ

**ـــ ګوزول**:ـ اِص ،د ناوې ډولۍ په کور کښې کښېښودل، ناوې کوزول ـ

**ـــ ګوزېدل** :ـ اِص، ډولۍ د ناوې کورته راوړلې کېدل ـ

**په ډولۍ کښې تلل** :ـ اِص ،د زناناؤ د يو ځاے نه بل ځاے ته په پالکۍ کښې وړلے کېدَل ـ

**ډولے** :ـ (ډو+لَے) [پ (مر+ګن)(اِس ، مذ ،وا ،ج: ډولي]، ورکوټے منګوټے ـ

**ډولے** :ـ (ډَو+لَے) ،[اَف:پ (قاموس)، اِس ، مذ]، جائېداد ، مال ـ

**ډَولے** :ـ (ډَو+لَے)،[پ ، اِس ، ص، مذ]، فېشني، ډولي ـ

کـه د بېلتـون پـه زولنـو کښـې شـې وروسـت

خـــو د ډولـــي آشـــنا وفـــا ئـــې ګڼـــه

**ډولـي** :ـ (ډَو+لـيْ)،[پ ، اِس ، ص]، فېشـني ، سـينګار کـووُنکے، ډولَـي، سرخْڼه کوُونکے، ځَان جوړووُنکے ـ

**ډُولېدل** :ـ (ډُوْ+لې+د+لْ)،[پ ، مص لا]،ورو ورو تلل ـ

**ډُولېـــدلے** :ـ (ډُوْ+لـــې+د+لَے) [پ ، مـــف ، مـــذ ، وا ، ج: ډُولېـــدلي، مـــؤ: ډُولېدلې]، ورو ورو تللے ـ

**ډُولېدنه** :ـ (ډُوْ+لې+د+نَه)، [پ ، حمص]، ورو ورو تلنه ـ

**ډُولېدُونکے** :ـ (ډُوْ+لې+دُو+نْ+کے)[پ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: ډُولېدُونکي، مؤ: ډولېدُونکې]، ورو ورو تلوُنکے ـ

**ډُومارل** :ـ (ډُوْ+ما+ر+لْ)،[اَف:پ (قاموس) مص مت]، (۱) پارَول، څوک څۀ کارته تيارَول.(۲) سترګې ټيټول ـ

**ډُومارلے** :ـ (ډُوْ+ما+ر+لَے) ، [اَف:پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ډُومارلي ،مؤ: ډومارلې]، پارَولے، اٰماده کړے ـ

**ډُومارنه** :ـ (ډُوْ+ما+ر+نَه)، [اَف:پ (قاموس) حمص]، پارَونه، اٰماده کَونه ـ

**ډُومـــارُونکے** :ـ (ډُوْ+مـــا+رُو+نْ+کَے) [اَف:پ (قـــاموس) فـــاع ، مـــذ ، وا ، ج: ډُومارُونکي ، مؤ: ډُومارُونکې]، پارَووُنکے، اٰماده کووُنکے ـ

**ډُومبخه** :ـ (ډُوْ+مْ+ب+خَه)، [پ (ظفر) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ډُومبخې]، د اوبو برېُوکۍ ـ

**ډُومبســـکه** :ـ (ډُوْ+مْ+ب+س+کـــه)،[اَف:پ (قـــاموس )اِس ، مـــؤ ، وا ، ج: ډومبسکې]، هغـه زمکـه چـې قـدرتي پـاس را اوچتـه شـوے وي يـا پخپله اوچته کړے شي ـ

**ډُومبـک** :ـ (ډُوْ+مْ+بَ+کْ) [پ (ظفـر) اِس ، مـذ]،(۱) ديمبـک، د ډول اٰواز.(۲) ډومبکه، ډُومبېکۍ، يو قسم مارغۀ چې توردلے ورته وائي ـ

**ډُومبکه**:ـ (ډُوْ+مْ+بَ+که)،[اَف:پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا]، و-ډُومبک (۲)

**ډُومبکـے** :ـ (ډُوْ+مْ+ب+کَـے)، [پ ، اِس، مَـذ ، وا ، ج: ډُومبکـي]، (۱) پـه خُولۀ ډول غږول.(۲) د سرو مچيو ګک يا ډَمکے ـ

ګبينۀ لـــــري مچۍ

ډُومبکے لري بمبري (خوشحال)

**ډُومبورے** :ـ (ډُوْ+مْ+بو+رَے)، [اَف: پ (قـاموس) اِس مذ وا ج: ډُومبوري]، د څپياکو ډېرے، ګُواټه ـ

**ډُومبېک** :ـ(ډُوْ+مْ+بې+کْ) [اَف:پ (قاموس) اِس ، مذ]، يو قسم مارغۀ ـ

**ډُومبېکۍ**:ـ (ډُوْ+مْ+بې+ک+ۍ)، [اَف:پ (قاموس) اِس ، مؤ]، و- ډُومبک ـ

**ډُومډومک** :ـ (ډُوْ+مْ+ډُو+مَ+کْ) ، [اَف:پ (قـاموس) اِس، مـذ ،وا ،ج: ډُومـډو مکان ]،يو قسم ورکوټې توره مرغۍ ـ

**ډوميسائل** :ـ (ډو+ميْ+سا+ئې+لْ)،[انګ ، اِس ، مذ]، په يـو ځـاے کښـې د استوګنې تصديق نامه ـ

**ډومېل** :ـ (ډو+مـې+لْ)،[پ ، اِس معرفـه]، د بنـو پـه ضلع کښـې د وزيـرو د قبيلې يو کلے

**ډُونډ** :ـ (ډُوْ+نْ+ډْ)، [پ ، ص ، مذ ، (مؤ، وا :، ډُونډۀ، ج: ډُونډې)]،وران، تباه، برباد ـ

**ډُونډ** :ـ (ډُوْ+نْ+ډْ) ،[پ ، ص]، تلاش، لټون ـ

د ورک زړۀ ډُونډئې په زلفو کښې چا راکړ

چې ابق مې پـــــه زېلُونو کښې موند لاښۀ (علي خان)

**ـــ وهل** :ـ اِص، تلاش کول ، لټول ـ

**ډونډ**:ـ (ډو+نْ+ډْ) [اَف:پ (قاموس) اِس ، مذ]، ډنډوره، نغاره، اعلان، بوله

**ـــ کول** :ـ اِص، نغاره کول، اعلان کَول ـ

**ډَونډاکے** :ـ (ډُوْ+نْ+ډا+کَے)[اَف:پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ډُونډاکې]،د پتانۀ د سراډُوکے ـ

**ډُونکے** :ـ (ډُوْ+نْ+کَے)، [اَف:پ (قاموس) اِس ، مذ ، وا ، ج: ډُونکې]، بېلچه

**ډونـګ** :ـ (ډو+نْ+ګ)، [اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـذ]، (۱) پـه غـلا څـاروي بوتلل (۲) لوئي، کبر، غرور.(۳) پېچمې، پشاړې ـ

**ـــ وهل** :ـ اِص، څاروي په غلا بوول ـ

**ډونګـالي** :ـ (ډو+نْ+ګـا+لِيْ)،[پ (اَش) اِس، ص ، مـذ]، کُوني، دلـه، بـې غېرت، دوُوس

**ډُونګ ډُونګ** :ـ (ډُوْ+نْ+ګ+ډُوْ+نْ +ګْ)،[پ ، اِس ، مـذ]، زُونـګ زونـګ، د ناراضګۍ او نا خوالۍ کلمه ـ

**ـــ کول** :ـ اِص، زُونګ زونګ کول، د ناراضګۍ اظهار کول، زنګېدل ـ

**ډُونګـرۍ** :ـ (ډُوْ+نْ+ګْ+ر+ۍ) ، [اَف:پ (قـاموس) اِس ، مـؤ]، (۱) بېلچـه.(۲) د کشتۍ چپو يا سينګاوڼ.(۳) غټه څمڅه ـ

**ډُونګلـه** :ـ (ډُوْ+نْ+ګْ+لَـه)،[اَف:پ (قـاموس) اِس، مـؤ، وا ، ج: ډونګلـې]، ډينګلۍ، ډينګرۍ ـ

**ډُونګن** :ـ (ډُوْ+نْ+ګ+نْ)،[اَف:پ (قاموس) اِس ، ص، مذ ، (مؤ ، وا: ډُونګنه ج: ډُونګنې]، زنګن ، هغه سړے چې زنګ زنګ کوي، خُوڼ خوڼے، په پوزه کښې خبرې کووُنکے ـ

**ډُونګــه** :ـ (ډُوْ+نْ+ګــه) ، [پ ، اِس ، مـؤ، وا ، ج: ډُونګــې]،(۱) هغــه ژور سرپوښ لوښے چې ترکاري يا انګولے پکښې اچولے شي.(۲) د بنيادم يا د څاروي د شا اٰخري حصّه.(۳) د غرۀ اوچت کُوب ـ

**ډونګه** :ـ (ډو+نْ+ګه) ، [پ ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ډونګې]، (۱) د بنيادم نرۍ ملا. (۲) ټوقې مسخرې ـ

**ډُونګهـار** :ـ (ډُوْ+نْ+ګ+هـا+رْ)، [اَف:پ (قـاموس) اِس ، صـو ، مـذ]، بُـوڼ هار، غُوڼ هار، پرله پسې زڼ زُوڼ ـ

**ډونګے** :ـ (ډو+نْ+ګَے)[پ ، اِس ، ص ، مـذ] (۱) ټوقمـار(۲) داړې مـار، ډاکه مار، شُوکمار ـ

**ډُونګے** :ـ (ډُو+نْ+ګَے) ، [پ (ظفر) اِس، ص ، مذ ، وا، ج: ډُونګي، ډُونګيـان (مـؤ، وا: ډونګـۍ، ج: ډُونګيـانې)]، (۱) ژور، ډېـر غـرق.(۲) هغـه څوک چې د زړۀ خبره چاته نۀ ظاهروي ـ

**ډُونګېدل** :ـ (ډُوْ+نْ+ګې+د+لْ)، [اَف:پ (قاموس) مص مت]، زُنګ زُنګ کول، د ناراضګۍ اظهار کول ـ

**ډُونګېدلے** :۔ (ډُوْ+نْ+ګې+دَ+لَے)، [اَف:پ (قاموس) مف ، مذ ، وا ، ج: ډُونګېدلي، مؤ: ډونګېدلې]، زنګېدلے، هغه څوک چې د خفګان اظهار ئې کړے وي ۔

**ډُونګېدنه** :۔ (ډُوْ+نْ+ګې+دَ+نَه)، [اَف:پ (قاموس) حمص]، زُنګ زُنګ کونه، د خفګان اظهار کونه ۔

**ډوو** :۔ (ډ+وُوْ)، [اَف:پ (قاموس) ص]، تیز، تېز ۔

**ډوول** :۔ (ډ+وُوْ+لْ) [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ډوولُونه]، مسینګے سګ ماهي ۔

**ډوهر** :۔ (ډُوْ+ه+رْ)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ ، مؤ: ډُوهره]، ډېر بُوډا، زیات زوړ، عُمر خوړلے ۔

**ډوي** :۔ (ډو+يْ)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، باک ، پروا ۔

**ډووه**:۔ (ډو+وَه) [اپ (ګن) اس ، مؤ، وا ، ج: ډووې]، و۔ ډالۍ ۔

**ډوه** :۔ (ډَ+وَه) [اپ (ظفر) اس ، مؤ، وا ، ج: ډوې]، ډالۍ، تحفه، ډووه ۔

**ـــ ورکول** :۔ اص، تحفه ورکول، ډالۍ ورکول ۔

**ـــ وړل** :۔ اص، تحفه وړل، ډالۍ وړول ۔

**ډوئې** :۔ (ډو+ئې)، [اپ (اَف) اس]، پروا ، خیال ۔

**ـــ وړل** :۔ اص ،پروا لرل، خیال ساتل ۔

**ډویژن**:۔(ډَ+وِي+ژْ+نْ) [ انګ اس ، مذ ، وا ، ج: ډویژنُونه ]، و ۔ ډوبیزن ۔

**ډهاکه** :۔ (ډَ+ها+کَه)، (اس معرفه)، د بنګله دېش صدر مقام، پخوا زمانه کښې د ډهاکې مَلمل ډېر مشهور وو ۔

بیا نۀ ډهاکې کښې په شا لاړیم نۀ واکې کښې په شا

ما د سرُونو پــــه مینار درتـــــه کشمیر جوړ کړو (پریشان خټک)

**ډهکه**:۔(ډ+ه +که)، [اَف:پ (قاموس) اس، مؤ، وا ، ج: ډهکې]، لس، عشره

**ډے** :۔ (ډَ+ے)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ډهکې]، (۱) مُوڅۍ، مُوچې۔ د ماشومانو په لاس جوړ کړے غُونډ کاڼے چې لوبې پرې کوي۔(۲) د جولاګانو د تنستے دوه غاښے لرګے۔(۳) د غواو مېښو د شړلو آواز ۔

**ـــ کول** :۔ اص، پیتي کول، پیتو ګانے کول، مُوڅۍ کول، د ماشومانو په کاڼي لوبې کول ۔

**ډۍ** :۔(ډ+ۍ) [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ]، (۱) ګُلۍ ډنډا ، توپ ډنډا ۔ (۲) هغه فالتو خته چې د نوري ختې نه تراشلې او بېلولے شي ۔

**ډي ۔ ایس ۔پي** :۔ (ډِيْ+اِيْ+سْ+پِيْ) ،[اَنګ ،اس ، مخ]، ډپټي سپرډنټ پولیس ،د پولیس د محکمې ورکوټے کپتان ۔

**ډیبک**:۔(ډِيْ+بَ+کْ)، [اپ ، اس ، مذ]، د سیند د غاړې اُوچتوالے، ډبه ۔

**ډیبک** :۔ (ډِيْ+بَ+کْ)، [اپ (وز) اس ،مذ]، ډُوباک، د اُوبو د ګونډېےتړلو پړے ۔

**ډیبو** :۔ (ډِيْ+بو)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ]، یوه مرغۍ چې لکۍ ئې سپینه او نوربدن ئې تور وي ۔

**ډیبۍ** :۔ (ډِ يْ + ب + ۍ) ، [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ]، دکۍ، د پیو لوښلو لُوښے، ډُوبۍ ۔

**ډیبېټ**:۔ (ډِيْ + بې+ ټْ) [اَنګ اس ، مذ ، وا ، ج : ډیبېټُونه ]، بحث مباحثه، مناظره ۔

**ډیپا**:۔(ډِي+پا) [اَف:پ (قاموس) اس ، ص]، جلبي، ګرندے، شاطر ۔

**ډي پهلوان ډي** :۔ (ډِي + پَ + ه+ لَ + وا +نْ + ډِي) ، [اپ (ظفر) ، اس]، د ماشومانو یوه لوبه ۔

**ډیچ** :۔ (ډِيْ+چَ)، [اپ (د) اس ، مذ]، زغل، ټوپ ۔

**ډیچه** :۔ (ډِيْ+چَه)، [اپ (ب،خ) اس ، مؤ، وا ، ج: ډیچې]، ترپکه، ټوپ، ترنډه ۔

هغه ډیچې هغه تـــــرنډې له ماولاړې

چې به خوشے په جلکو کښې ګرځېدلم (خوشحال)

**ډیچې کول**:۔ (ب،خ) اص، ټوپ وهل، په ټوپونو کېدل، ترپکې کول، ډیچې وهل

**ډیچې وهل** :۔اص، و۔ ډیچې کول ۔

**ډیډا** :۔ (ډِيْ+ډاَ)، [اَف: پ (قاموس) ص]، جارو وهل ۔

**ډیډلېټر آفس** :۔ (ډي+ډ+لې+ټَ+رْ+ا+ف+سْ)، [اَنګ اس ، ص ، مذ]، هغه دفتر چې د غلطے پتے چټیاَنې ورلېږلے شي او د هلته نه د صحیح پتې درک لګولے شي ۔

**ډیډم** :۔ (ډِيْ+ډ+مْ)، [اپ (ظفر) اس ، مذ]، ډډم، یو قسم وابنۀ ۔

**ډیډنډۍ** :۔ (ډِيْ+ډَ+نْ+ډ+ۍ)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ]، ګُلي ډنډا ، توپ ډنډا ۔

**ډیډه** :۔ (ډِيْ+ډه)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ]، (۱) هغه لرګے چې د مېچنې په پاس پټ کښې لګېدلے وي او په مېنځ کښې ئې د لاندینې پټ نه د اوسپنې سیخ پکښې راوتے وي او مېچن پرې چُورلوي۔(۲) د بوتل بُوجه، خټ پُولے ۔ (۳) هغه منجیله چې د چیلم پخه پکښې ولاړه وي ،ډیډے۔(۴) ډېر موړ، اغېړلے، ډک۔(۵) صابر ، قانع۔(۶) هغه دوه خُولې اوسپنه چې سسپارئې د یوې د لرګي د حصّې سره راټینګ کړے وي ۔

**ـــ کېدل** :۔اص، (۱) ډېر مړېدل، اغېړلے کېدل۔(۲) صابره کېدل ۔

**ډیډئې**:۔(ډِيْ+ډ+ئېْ) [اپ ، اس ، مؤ]،لشتې، ډیډې + والۍ، د زناناؤ د غوږوکالے

**ډیډې** :۔ (ډي+ډې) ،[اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ]، و ۔ ډیډه (۳)

**ډېر** :۔ (ډې+رْ)، [اپ ، ص ، مذ ، (مؤ، وا: ډېره ، ج: ډېرې]، زیات، پرېوان، کافي

څوک دي چې تا اُووینې مېنځ درباندې نۀ شي

هــر لوري تـــه ډېردي که ئې ګورم خریدارستا (خوشحال)

**په ډېرښول** :۔اص، زیات شمارل، کافي ګڼل ۔

زمـــا شــیرینې داپــه ډېر اُونیسه

ښۀ دے بس نوره خوشي نۀ کړېږو (پریشان خټک)

**ډېر** :۔ (ډې+رْ)، [اپ ، ه ، ډهېر ، اس ، مذ]، ډېرے، ټوپ، دلۍ ۔

**ډېرا** :۔ (ډې+را) ، [ه ، اس، مؤ، وا ، ج: ډېرې]، ډېره ،دېره، کور، مکان، خېمه، تمبو

**ډېران** :۔ (ډې+را+نْ)، [اپ ، اس ، مذ ، وا ، ج: ډېرانُونه]، (۱) د خځلو ځاے ټوپ، تپ، ټپ ۔

څوک له خاورو ایرو پاڅوې تخت ورکړې

څوک لــــه تخته د ایـــرو په ډېران ولې (رحمٰن)

(۲) د حېض کپړا۔(۳) سخا ، ګنده، بوئي ناک ۔

**ډېران ډېرې** :۔ (ډې+را+نْ+ډې+رې)، [اپ ،ص ، مذ]، پرېوان، ډېرتېر، بې کچه، زیات، بس بېسیار ۔

**ډېرانی**:۔ (ډې+را+ن+ی) [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ]، دَ ډېران اچولو ځاے

**ډېرانے** :۔(ډې+را+نَے)، [اپ ، اس معرفه ، مذ]، د پښتنو یو عام نُوم ۔

**ډېرتېر**:۔ (ډې+رْ+تې+رْ) [اپ ، ص ، مذ]، ډېرزیات، پرېوان، ډېر تر ډېر ۔

**ډېرترډېر**:۔(ډې+رْ+ت+رْ+ډې+رْ) [اپ ، ص ، مذ]، و۔ ډېر تېر ۔

**ډېرځله**:۔(ډې+رْ+دْ+ز+لَه) [اپ ، ص]، ډېر وارې، څو څو واره، بیابیا ۔

**ډېرځۀ** :۔ (ډې+رْ+تْ+سَه)، [اپ ، ص]، ډېر زیات ۔

**ډېرښت**:۔ (ډې+ر+ښْ یا خْ+تْ) [اپ ، ص ، مذ]،ډېروالے، زیات والے، بیسارتیا ۔

**ډېرښ** :- (ډې+ر+ښْ)، [اپ (ب،خ)، اس ، مذ]، اَتېرښ، ډېرښه -

**ډېرښه** :- (ډې+ر+ښَه)، [اپ ، اس ، مؤ]، و- ډېرښ -

**ډېروالے** :- (ډې+رْ+وا+لَے)، [اپ ، ص ، مذ]، زیاتوالے، ډېرښت -

**ډېرول** :- (ډې+ر+و+لْ) ، [اپ ، مص مت ]، (۱) زیاتول، پرېوانول- (۲) بچت کول

**ډېرونک** :- (ډې+ر+وَ+نْ+ګْ) ، [اَف:پ (قاموس) حمص]، (۱) ډېرونه، زیاتونه (۲) بچت کَونه -

**ډېرونه** :- (ډې+ر+و+نَه)، [اپ ، حمص] ،و- ډېرونګ -

**ډېروُونکے** :-(ډېر+وُوْ+نْ+کَے) [اپ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: ډېروُونکي ، مؤ: ډېروُونکې]، (۱) زیاتووُنکے، تېلوُونکے-(۲) بچت کوُونکے -

**ډېره** :- (ډې+رَه)، [اپ ، اس ، مؤ، وا ، ج: ډېرې]، (۱) دېره، د ناستې ځاے ، حُجره، چوک، مېشت، اٰباد -

**ـــ کول** :- اص، دېره کول، مېشتول -

**ـــ کېدل** :- اص، دېره کېدل، میشتېدل -

**ډېره اسماعیل خان** :- (ډې+رَه+ا+سْ+ما+عیْ+لْ+خا+نْ)، [اپ ، اس ، معرفه]، دېره، د ډېره اسماعیل خان ضلع صدر مقام -

**ډېره وال**:-(ډې+رَه+وا+لْ) [اپ ، ص ، مذ ، وا ، ج: ډېره والان (مؤ، وا: ډېره واله ، ج: ډېره والې) ]، د ډېره اسماعیل خان اوسېدُونکے -

**ډېرۍ** :- ( ډې+ ر+ ی) [اپ ، اس تصغیر ، مؤ ]، ورکوټے خټې ، ډېرک ، وړوکے غُونډۍ

**ډېرۍ** :- (ډې+ر+ی)، [اپ ، اس معرفه ، مؤ]، د چارسدې په تحصیل کښې یو کلے چې ډېرۍ شو قدر هم ورته وئیلے شي -

**ډېرے** :- (ډې+رَے)، [اپ ، اس ، مذ، وا ، ج: ډېري]، انبار، ذخیره -

**ډېري زرداد** :- (ډې+رېْ+زَ+رْ+دا+دْ)، [اپ ، اس معرفه ]، د چارسدې په تحصیل کښې د لنډي سیند په غاړه یو کلے -

**ډېرېدل** :- (ډې+رې+د+لْ)[اپ ، مص لا]، (۱) زیاتېدل، پرېوانېدل- (۲) ځناور لنګېدل (مر)

**ډېرېدنګ** :- (ډې+رې+دَ+نْ+ګْ)، [اَف:پ (قاموس) حمص]، (۱) ډېرېدنه، زیاتېدنه، پرېوانه کېدنه-(۲) ځناور لنګېدنه (مر) -

**ډېرېدنه** :- (ډې+رې+د+نَه)، [اپ ، حمص]، و-ډېرېدنګ -

**ډېرېدُونکے** :- (ډې+رې+دُوْ+نْ+کَے)، اپ، صف، مذ ،وا، ج: ډېرېدونُونکي ، مؤ: ډېرېدونکې]، (۱) زیاتېدُونکے، پرېوانېدُونکے (۲) ځناور لنګېدونُکے (مر) -

**ډېري فارم** :- (ډَي+رېْ+فا+رْ+مْ) ، [انګ ، اس ، مذ، وا ، ج: ډېري فارمُونه، ډېري فارمې]، د غواؤ مېښو د ساتلو ځاے -

**ډېز** :- (ډيْ+زْ) ، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، د تیز اٰواز -

**ډیزل** :- (ډيْ+زَ+لْ)، [انګ ، اس ، مذ]، د پټرولو نه ارزان بیعه او د لاندې درجې تېل چې ګاډے پرې چلېږي -

**ډیزلي** :- (ډيْ+زَ+لي) ، [اپ ، ص]، په ډیزلو چلېدوُنکے ګاډے -

**ډیس** :- (ډيْ+سْ)، [اپ ، اس ، مذ ، (مؤ، وا: ډیسه ، ج: ډیسې]، (۱) ډېر مور، ډک ډوک، ډک پک-(۲) دجوارو غټه ډوډوی-(۳) کوټک، غټه ډنډه

**ـــ کول** :- اص، زیات خوراک کول -

**ـــ کېدل** :- اص، زیات خوراک کېدل -

**ډے سکالر**:- (ډے+سْ+کا+لَ+رْ) [انګ ، اس ، ص، مذ ، وا ، ج: ډے سکالران]، هغه طالبعلم چې د کورنه روزانه تعلیم حاصلولو ته ځي راځي -

**ډیسه** :- (ډې+سَه)، [اپ (ب،خ) ، ص]، ضد -

**ـــ کول** :- اص، ضد کول -

**ـــ وئیل** :- (ښو) اص ،بې قانونه یا بې طریقې کاکول -

**ډیسه**:-(ډې+سَه) [اپ ، اس، مؤ، وا ، ج: ډیسې]، دوکه، ټګي، فرېب -

**ـــ چلول** :- اص، په چل ول کار ویستل، په ټګۍ ټوری خپل مقصد ترسره کول

**ـــ کول** :- اص، ټګي کول، دوکه کول، چل کول -

**ـــ ورکول** :- اص، دوکه ورکول، ټګېیل -

**ډیسه ور** :- (ډیسه+وَ+رْ)، [اپ ، (ب،خ) اس، مذ ، (مؤ، وا، ډیسه وره ، ج: ډیسه ورې]، ضدي، نارامه، ذېلي، اړک -

**ډي-سي** :- (ډيْ+سيْ)، [انګ، اس، مخ]، ډپټي کمشن، د ضلعې لوے افسر

**ډیسې** :- (ډې+سې) ، [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ ، ج]، د جوارو وړې -

**ډیفنس**:- (ډيْ+ف+نْ+سْ) [انګ ، اس، مذ]، بچاؤ، ځان ساتنه، دفاع -

**ډیک** :- (ډيْ+کْ)[اَف:پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ډیکان]، یو خړ رنګې ورکوټې مرغۍ

**ډیک** :- (ډې+کْ)، [اپ (ظفر) اس ، مذ ، وا ، ج: ډېکان]، د اُوبو ورکوټې مارغهٔ چې پښې او منبوُکه ئې اُوږده وي -

**ډیکبند** :- ( ډيْ+کْ+ بَ+نْ+دْ )، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، مرغُومګے، یوه خاص لوبه

**ډیګ** :- (ډيْ+ګْ)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ (مؤ ، وا: ډیګه ، ج: ډیګې)]، ډګ، په ډګ ډګ تلونکے اَس، هغه اَس چې په هوار قدم نهٔ ځي، ډیګ ډیګو، ډوبلن، ډیګلن

**ډیګبند** :- (ډيْ+کْ+بَ+نْ+دْ)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، مرغُومکے، یوه خاص لوبه

**ډیګ ډیګو**:- (ډيْ+کْ+ډيْ+ګو)[اَف:پ (قاموس) اس ، ص ، مؤ] و -ډیګ

**په ډیګ ډیګوتلل** :- اص، په هوار قدم نهٔ تلل -

**ډیګلن**:-(ډيْ+ګْ+ل+نْ)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، و- ډیګ -

**ډیګله** :- (ډيْ+ګْ+له) ، [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ]، ډوبله -

**ډیګور** :- (ډيْ+ګ+وَ+رْ) ، [اپ ، اس ، مذ]، دوښاخه، دوه غاښے -

**ډي ګول** :- (ډيْ+ګْ+و+لْ) ، [اپ (وز) اس]، جاله، منجاله، بنخولے -

**ډیل** :- (ډيْ+لْ)، [اپ ، اس ، مذ]، (۱) ایسارتیا، تاخیر، دېري، اټالتیا، ځنډ - (۲) شکایت، ګیله -

**ـــ کول** :- اص ،(۱) دېري کول، ایساربدل-(۲) ګیله کول -

**ـــ کېدل** :- اص ،(۱) دېري کېدل، تاخیر کېدل-(۲) ګیله کېدل -

**ـــ ورکول** :- اص، اټالول، کار ایسارول -

**ډیل ډول**:-(ډيْ+لْ+ډ+وَ+لْ) [اپ ، اس ، ص ، مذ]، (۱) فېشن -(۲) رنګ جُثه -

**ـــ کول** :- اص ،فېشن کول، ځان جوړول -

**ډیلر** :- (ډيْ+لَ+رْ)، [انګ ، اس، مذ ، وا ، ج: ډیلران]، کاروباري، بیوپاري، د کاروبار لېن دېن کووُنکے -

**ډیلکۍ**:-(ډيْ+لْ+ک+ی) [اَف:پ (قاموس) اس ، مؤ]، ډیله، یو قسم وانهٔ -

**ډیلګے** :- (ډيْ+لْ+ګَے)، [اپ (وز) اس ، مذ، وا ، ج: ډیلګي]، (۱) و - ډولن-(۲) د ګانۍ هغه حصه چې ګنې پکښې نچوړ کېږي -

**ډیلو** :- (ډي+لَو)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، ډیل ، ځنډ ، ګړۍ -

**ډیلول**:- (ډيْ+ل+و+ل) [اپ ، مص مت]، ایسارول، اټالَول، معطول -

**ډیلونه** :- (ډيْ+ل+و+نَه) ، [اپ ، حمص]، ایسارونه، اټالونه، معطل کونه -

**ډیلوُونکے** :- (ډيْ+ل+وُو+نْ+کَے) ، [اپ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: ډیلووُنکي ، مؤ: ډیلووُنکې]، ایسارووُنکے، اټالووُنکے، معطل کووُنکے -

**ډیله** :- (ډي+لَه)، [پ ، اس، مؤ، وا، ج: ډيلي ]، يو قسم واښهٔ ۔
د ازل حکم په مثل دهاتي دے
د سړي فکر مثال پړے د ډيلي (خوشحال)

**ډیلي** :- (ډي+لَے) [پ ، اس معرفه]، دهلي ،دلّي، د هندوستان صدرمقام ۔
خداے په خپل قدرت څوک لوے او څوک هلک کړه
نـــهٔ چې هـــر ښـــار ډيـــلے شـــي يا لاهور (رحمٰن)

**ډیلېدل** :- (ډيْ+لې+د+لْ)، [پ ، مص لا]، ایسارېدل، اټالېدل ۔

**ډیلېدنه** :- (ډيْ+لې+د+نَه) ،[پ ، حمص] ایسارېدنه، اټالېدنه ۔

**ډیلېدُونکے** :- (ډيْ+لې+دُو+نْ+کَے) [پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ډيلېدُونکي ، مؤ: ډيلېدُونکې] ،ایسارېدُونکے، اټالېدُونکے ۔

**ډیلیګېټ**:- (ډي+لي+ګې+ټْ) [انګ، اس ، مذ] ،نمائنده، استازے، وکيل

**ډیم**:- (ډَي+، [اَنګ ه: ډهيم ،اس، مذ، وا ، ج: ډيمُونه]، دَ اوبو بند ۔

**ـــــ تړل** :- اص ،ډيم جوړول، دَ اوبو بند جوړول ۔

**ـــــ جوړول** :- اص ،و - ډيم تړل ۔

**ـــــ شلېدل** :- اص، دَ اوبو بند ماتېدل او اوبهٔ ترې بهېدل ۔

**ډیمارچه**:-(ډيْ+ما+رْ+ چَه) [پ ، اس ، مؤ]، ډيمريج، د ګودام نه خپل رارسيدلے سامان د وخت دننه په نهٔ اوچتولو راغلې جُرمانه ۔

**ډیمبک**:- (ډيْ+مْ+بَ+کْ) [پ (ظفر) اس ، مذ]، و- ډُومبک ۔

**ډېمبور**:- (ډې+مْ+بَ+وَ+رْ)، [پ (وز) اس ، ص ،مذ ، (مؤ ، وا : ډېمبوره ، ج: ډېمبورې)] غټ خبتيے، پړسېدلے بنيادم ۔

**ډېمبه** :- (ډې+مْ+بَه)، [پ (سو) اس ، مؤ]، يو قسم مهے يا کب، متل: د ډېمبې سر د غوړو ګوټ ۔

**ډیمبه** :- (ډيْ+مْ+بَه)، [اَف:پ (قاموس) اس، مؤ، وا ، ج: ډيمبې] ، هغه لرګے يا پړے چې جاله او د کشتۍ بېلچه سره پرې تړلے شي ۔

**ډیمریج** :- (ډيْ+مْ+ري+جْ) ،[اَنګ ، اس ، مذ]، و -ډيمارچه ۔

**ډیمیج** :- (ډَے+مي+جْ)، [اَنګ ، اس ، مذ]، نقصان، تاوان ۔

**ډین**:-(ډيْ+نْ) [انګ ، اس ، مذ] (۱) مذهبي عالم۔(۲) د څو شعبو مشر ۔

**ډینائي** :- (ډيْ+نا+ئي)، [پ (مر+بنو) اس ، مذ]، ډنډه، لوړ، کوټک، لنډ شان کوټک

**ډینبک** :- (ډيْ+نْ+بَ+کْ) ،[اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، يوه توررنګې مرغۍ چې لکۍ ئې سپينه وي ۔

**ډینټسټ** :- (ډَے+نْ+ټ+سْ+ټْ)، [اَنګ ، اس ، مذ ، وا، ج: ډينټسټان (مؤ، وا: ډينټسته ، ج: ډينټسټې]، دندان ساز، د غاښُونو ډاکټر ۔

**ډینټسټري**:- (ډَے+نْ+ټ+س+ټْ+رِيْ) [اَنګ ، اس ، مؤ]،د غاښُونو د علم شعبه

**ډینډاپ** :- (ډيْ+نْ+ډا+پْ)، [پ ، اس ، مذ ، وا، ج: ډينډاپان (مؤ ، وا: ډينډاپه ، ج: ډينډاپانې]، ننداپ، ډينډتي ۔

**ډینډپ توب**:- (ډيْ+نْ+ډَ+پْ+تو+بْ) [پ (ب،خ) اس ، مذ]، و-ډانډسي ۔

**ډینډت** :- (ډيْ+نْ+ډَ+تْ) ،[پ ، اس ، مذ]، پرزونه ۔

**ـــــ کول** :- اص، پرزول، پړول، لړَول، سزا ورکول ۔

**ډینډتي** :- (ډيْ+نْ+ډَ+تيْ) ،[پ ، اس ،ص ،مذ، وا ، ج: ډينډتيان]،و-ډينډاپ

**ډېنډه** :- (ډې+نْ+ډَه) [پ (مر) ، اس]، د لنګرۍ يا بټل لرګے چې څيزوُنه پرې مېده کولے شي ۔

**ډینډېدل**:- (ډيْ+نْ+ډې+د+لْ) [پ (وز) مص لا]، وارخطا لامبو وهل ۔

**ډینغه** :- (ډيْ+نْ+غَه) ،[اَف: پ (قاموس) اس ، ص] ،د لاړې ملګرے، لاړښودُونکے ۔

**ـــــ کېدل** :- اص، د لاړې ملګرے کېدل ۔

**ډېنګ** :- (ډې+نْ+ګْ) ،[اَف:پ (قاموس) اس ، مذ ،وا، ج: ډېنګان]، (۱) د اوبو مارغهٔ چې تک سپين وي، ډينګ، اوږد مزغے او اوږده مښوکه لري۔(۲) اوچت، لوړ، دنګ۔(۳) تالاؤ ۔

**ډینګاز** :-(ډيْ+نْ+ګا+زْ) [اَف:پ (قاموس) اس ، ص ، مذ ، (مؤ، وا : ډينګازه ، ج:ډينګازانې]، ډېرمانده، زيات کمزورے، ډنګر ۔

**ډینګ ډینګو** :- (ډيْ+نْ+ګْ+ډيْ+نْ+ګو) [اَف:پ (قاموس) ، ص]، (۱) ناهوار قدم، ډګ ډګ۔(۲) وران ويجاړ کار ۔

**ـــــ کول**:-اص، (۱) په ناهوار قدم تلل، په درينچکو تلل۔(۲) کار ګډوډ کول ۔

**ـــــ کېدل** :- اص، کار ګډ وډ کېدل ۔

**ډینګ ډینګے**:-(ډيْ+نْ+ګْ+ډيْ+نْ+ګَے) [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]،د اللّهوپه شان يوه سندره چې د ماشومانو د اُودهٔ کولو د پاره وئېلے شي ۔

**ـــــ کول** :- اص ،اللّهو وئېل ۔

**ډینګر** :-(ډيْ+نْ+ګَ+رْ)[پ (مر)، اس ، مذ]، ډبلۍ، د څهٔ څيز د کُوټلو لرګے ۔

**ډینګري** :- (ډيْ+نْ+ګْ+ر+ی)، [پ ، اس ، مؤ]، (۱) پوشکۍ، خرميړې، پريړه۔ (۲) د کوهي نه د اوبو راويستلو لرګے چې بوقه ورسره تړلے وي، ډينګلۍ ۔(۳) د جالې لرګے چې پرهم ورته وائي۔(۴) د جوارو د ټکولو لرګے يا کوتک ۔(۵) د ډنډتي د مالُوچو پستولو لرګے۔(۶) د اوبو يو قسم ورکوټے کُوهے ۔

**ډینګله**:- (ډيْ+نْ+ګْ+لَه) [پ (وز) اس ، مؤ]، د ونې د ستې غټه حصّه ۔

**ډیئي لوړ**:- (ډيْ+ئي+لَ+وَ+ړْ)، (بنو) اس]، ګُلي ډنډا ، توپ ډنډا ۔

**ډینګلـــه** :- (ډيْ+نْ+ګْ+لَـــه)، [اَف:پ (قـــاموس) اس ، مـــؤ، وا ، ج: ډينګلې]، (۱) هغه حرکت چې هر کله سپے په سپۍ اُوخېژي او پاس پرې خوزي۔(۲) رېندے، رېړے

**ـــــ وهل** :- اص (۱) د سپي په سپۍ ګسې وهل۔(۲) د بوډاتوب له کبله په بدن رېړے راتلل ۔

**ډینګلی**:-(ډيْ+نْ+ګْ+ل+ی) [پ (ظفر) اس ، مؤ]، و- ډينګرۍ ۔

**ډینے** :- (ډي+نَے)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، اَبس ډنډې، ډۍ ۔

**ـــــ کول** :- اص ،اَبس ډنډې کول، ډۍ کول ۔

**ډیوالے** :- (ډيْ+وا+لَے)، [پ ،ه: ديواليه ، اس ، مذ]، هغه سړے چې ډېر قرضدارے شي او د قرض پرېکولو جوګه نهٔ وي ۔

**ـــــ کېدل** :- اص، ډېر زيات قرضدار کېدل ۔

**ډیوالي** :- (ډيْ+وا+لـيْ) ،[ه ، اس ، مؤ]، ديوالي، د هندوانو يوه مذهبي دستوره چې ډيرې ډيوې پکښې بلَوي او د لکشمي دېوي پُوجا پکښې کوي ۔

**ډیـــوټ**:-(ډيْ+و+ټْ) [پ ، اس ، مـــذ ، وا ، ج: ډيوټُونـــه]، دَ ډيـــوې کښېښودو لرګے يا تاخ ۔

**ډیـوټي** :- (ډيْ+و+ټيْ) [اَنګ اس، مؤ، وا ، ج: ډيوټيانې] (۱) فرض، کار (۲) محصول

**ـــــ پرېکول** :- اص، د محصول ټاکلے شوے رقم ادا کول ۔

**ـــــ کول** :- اص ،فرض پُوره کول، خپل کار تر سره کول ۔

**ـــــ لګول** :- اص، (۱) د چا ذمه واري ټاکل، چاته څهٔ کار سپارل۔(۲) محصول لګول، د محصول رقم ټاکل ۔

**ـــــ لګېدل** :- اص ،(۱) چاته څهٔ فرض سپارلے کېدل۔(۲) د محصول رقم ټاکلے کېدل ۔

**د ډیوټۍ نه پټېدل** :- اص، (۱) څوک د ذمه وارۍ نه اخوا دېخوا کول۔

(۲) محصول پرېکولو کښې غلا کول ۔

**ډیوټي ګل** :۔ (ډیوټي+ګُ+لْ)، [پ ، ص]، هغه سړے چې د ډیوټۍ ډېر پابند وي په خپله ذمه وارۍ پوره کولو کښې ډېر زیات تابعدار ۔

**ډیوړ** :۔ (ډيْ+وَ+ړْ)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، (۱) اګربتۍ چې د خوشبوئۍ د پاره په ودونو کښې بلولے شي۔(۲) د خاورو ډیوه۔(۳) د غوړُونو یو قسم کالے

**ډیوړۍ**:۔ (ډيْ+وْ+ړ+ی) [پ ، ه: ډیوړهي، اس ، مؤ]، د کور لویه دروازه چې د پاسه پرې چت وي او دواړو طرف ته ئې مخه ازاده وي ۔

**ډیوډیو** :۔ (ډيْ+وْ+ډيْ+وْ)[اَف:پ (قاموس) کلمه]، یوه کلمه چې د ټندیا سانډ په غوایامېښها د خېژولو په وخت وئېلے شي ۔

**ډیوډیوک** :۔ (ډيْ+وْ+ډيْ+وَ+کْ)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ ، وا ، ج: ډیو ډیوګان]، دَ ډیبک په شان خړرنګې چرچڼه ۔

**ډیوک** :۔ (ډيْ+وْ+کْ)، [اَنګ ، اس ، مذ]، نواب، سردار ۔

**ډیولا**:۔(ډيْ+وْ+لا)، [اَف:پ (قاموس) اس ، مذ]، مسینګۍ، ډوول، سګ ماهي ۔

**ډیوه** :۔ (ډيْ+وَه)، [پ ، ه: دیا ،اس ، مؤ ، وا ، ج: ډېوې]، چراغ، د خاورو یا ټیږ نه جوړه غونډه شانَ کُوپۍ چې په تېلو بلېږي ۔

**ډیوه بلول** :۔اص، رڼا کول ۔

**ـــ بلېدل** :۔ اَص، رڼا کېدل ۔

چې په زړهٔ ئې د وحدت ډیوه شوه بله
تجلي بــــه ئې له مخه ځي افتاب شۀ (خوشحال)

**د ډیوې د کونه لاندې تیارۀ** :۔مخ ،هغه نزدې څیز چې د خلقو د نظر نه پټ شوے وي

**ډیوه خولے** :۔ (ډیوه+خْ+و+لَے) ، [پ ، ص ، مذ ، مؤ ، ډیوه خولې]، چینګ خولے، هغه ماشُوم چې ژړا ته تیار وي ۔

**ـــ کېدل** :۔اص ،ژړا ته تیارېدل ۔

**ډیوه ګۍ**:۔ (ډیوه+ګ+ی) [پ ، اس تصغیر ، مؤ]، ورکوټې شان ډیوه ۔

**ډېویز** :۔ (ډې+وي+زْ)، [پ ، ص) رَوڼ، روښانه ۔

د تورې شپې ډېویز اسمانه

**ډییه** :۔ (ډيْ+یَه) [اَف:پ (قاموس) اِس ، مؤ ، وا ، ج: ډییې]، په کُوځې کښې د ناستې ځاے

◈◈◈

# ذ

**ذ** :ـ (ذا+لْ)، [ع ،اِس، مذ ، وا ،ج: ذالُونه)] ،د پښتو د الف بې د پتهۍ پينځلسم توری، د ابجدو په حساب ئې اعداد اُوه سوه مقرر دي. ـ

**ذات** :ـ (ذا+تْ)، [ع ، اِس، مذ ، وا ، ج: ذاتُونه]، (۱) وجود، خاصيت، جوهر، حقيقت ـ

د صوت له عيبه هسې پاکيزه دے
لکه ذات د وښتۀ نشته دے په ها (رحمٰن)

(۲) نسل، قوم ـ

زۀ رحمٰن چې اُووينم يار وايم خدايه خير کړې
گـــڼه ښــــاپيرۍ ده د بنــــي اٰدم لـــــه ذاتـــــه

(۳) قِسم-(۴) ځان ـ

ـــــ **پسې تلل**:ـاِص، (۱) د نسل اثر کېدل-(۲) د نسل خيال ساتل ـ

**پـه ذات کښې شـريکول** :ـ اِص ،پـه ذات کښـې گډول، پـه عزيزولـۍ، وروروليۍ يا قام ولۍ کښې شاملول ـ

**په ذات کښې گډول**:ـ اِص ،و -په ذات کښې شريکول ـ

**ذات پات** :ـ (ذات+پا+تْ)، [ه ، اِس ، مذ]، نسل، قوم، خاندان، اصل، پته، قبيله ـ

**ذاتي** :ـ (ذا+تِيْ)، [ع ، ص]، (۱) خپل حقيقي، کورنے، د خپل ځان- (۲) دښۀ نسل نه، اصلي ـ

**ذاتيات** :ـ (ذا+تِ،+يا+تْ)، [ع ، اِس ، مذ]، دښمني، ترپگني، نالگي، زړۀ بداوے ـ

دازمونږ ښائسته ژبه ذاتياتو ابته کړه (صادق الله اورکزے)

ـــــ **کول** :ـ اِص، دښمني ترپگني کول، بغض کينه لرل ـ

**ذاکر**:ـ (ذا+کِ+رْ) [ع ، اِس ، مذ ، وا ، ج: ذاکران (مؤ ، وا: ذاکره ، ج: ذاکرې]، (۱) ذکر کوونکے-(۲) د شيعه فرقې واعظ ـ

**ذائقه** :ـ (ذا+ ئې + قَه )،[ع ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ذائقې]، خوند، مزه، لذت ـ

ـــــ **اخستل** :ـ اِص، خوند اخستل، ذائقه څکل ـ

ـــــ **بدلول** :ـ اِص ،خوند بدلول ـ

ـــــ **بدلېدل** :ـ اِص ،خوند بدلېدل، خوند خرابېدل ـ

ـــــ **تلل** :ـ اِص، بې خونده کېدل، خوند بدلېدل ـ

ـــــ **څکل** :ـ اِص ،و -ذائقه اخستل ـ

ـــــ **خرابول** :ـ اِص،خوند خرابول، بې مزې کول ـ

ـــــ **خرابېدل** :ـ اِص، خوند خرابېدل، بې مزې کېدل ـ

**ذائقه دار** :ـ (ذائقه+دا+رْ)، [فا ، اِس ، ص ، مذ (مؤ ، وا: ذائقه داره ، ج: ذائقه دارې]، خونده ور، مزېدار ـ

**ذبحه**:ـ (ذَ+بْ+حَه)[ع ، اِس ، مؤ]، حلاله،حلالونه، مرۍ پرېکول ـ

ـــــ **کول** :ـ اِص ،حلالول، په شرعي طور سره مرۍ پرېکول ـ

ـــــ **کېدل** :ـ اِص ،حلالېدل، په شرعي طور سره مرۍ پرېکېدل ـ

**ذبيح** :ـ (ذَ+بِيْ+حْ)،[ع ، اِس ، ص ، مذ]، ذبح کړے شوے، حلال شوے، هغه څاروے چې د قربانۍ د پاره خوښ کړے شوے وي

**ذبيح الله** :ـ (ذ+بِيْ+حُ+لْ+لا+هْ) ، [ع ، اِس ، ص ، مذ]، د حضرت اسماعيل عليه اسّلام لقب ـ

**ذبيحه** :- (ذَ+بِيْ+ حَه)، [ع ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ذبيحې]، د قربانۍ ځناور، په شرعي ډول حالال کړے شوے ځناور ـ

**ذبيحه** :داهمه واړه د خاورو ذخيرې دي (۲) پنگه، جمع کړے دولت- (۳) بُوزغلے ـ

ـــــ **جوړول** :ـ اِص ،(۱) بُوزغلے تيارول-(۲) د راتلُونکي ژوند د پاره توښه جوړول ـ

ـــــ **کول** :ـ اِص، جمع کول، راغونډول، دلۍ کول، اَنبارول ـ

ـــــ **کېدل** :ـ اِص ،جمع کېدل، راغُونډېدل، دلۍ کېدل، انبارېدل

**ذخيره** :ـ (ذَخِيْ+رَه)، [ع ، اِس ، مؤ ، وا ، ج: ذخيرې]، (۱) جمع، گودام

ذخيره د دنيا مه کوه رحمٰنه

**ذخيره اندوز** :ـ (ذخيره+اَ+نْ+دو+ز) ، [فا ، اِس ، مذ ، (مؤ ، وا: ذخيره اندوزه ، ج: ذخيره اندوزې) ]،ذخيره کوَوُنکے، جمع کوُونکے، گودام ډکوُونکے، هغه څوک چې مال د دې غرض د پاره خوندي کښېږدي چې روستو به زيات قيمت پرې وصول کړي ـ

**ذخيره اندوزي**:ـ (ذخيره+اَ+نْ+دو+زِيْ)، [فا ، اِس ، مؤ]، په زيات قيمت د خرڅولو دپاره اؤ د ډېرو پېسو گټلو په نيت مال خوندي کَونه ـ

**ذرّه** :ـ (ذَ+رْ+رَه) [اِس ، مؤ، وا ، ج: ذرې]، (۱) پُوټے، لږ شان ـ

په يوه ذره به وړے يا به موړ وي
پـــه يوه ذره به گرم يا به سوړوي (رحمٰن)

(۲) په فضا کښې بې حسابه بڅري موجود دي چې د نمر په رڼا کښې په نظر راځي ، دا هر يو بڅرے ذره بللے شي- د مادې ډېره وړه ټوټه

ذرې تـــۀ چې هسې بـرېښې منوّره
که پوهېږې دا برېښنا دې ده له نمره (خوشحال)

(۳) د غوښې يوه تيکه، (ب،خ) ـ

**ذره ذره** :ـ (ذره+ذَ+رْ+رَه )، [پ ، ص]، (۱) ټوټې ټوټې، ذرې ذرې، لږ لږ، پُوټے پُوټے-(۲) تيکې تيکې ـ

ـــــ **کول**:ـاِص، (۱) ټوټې ټوټې کول،ورکوټې ورکوټې کول-(۲) ډېر سترے کول ـ

**ـــ کېدل** :۔ اص، (۱) ټوټې ټوټې کېدل، ورکوټې ورکوټې کېدل۔(۲) ډېر ستړے کېدل۔

**ذرّي کېدل** :۔ اص ،(۱) ټوټې کېدل۔(۲) خفه کېدل۔

د رسول له غمه زړۀ زما ذري شه
څـۀ بـه وايم دا ستازي له ځوابه (رحمٰن)

**ذريعـه** :۔ (ذَ + رِيْ + عَـه) [ع ، اس ، مـؤ ، وا ذريعـې] ، وسـيله، واسـطه، دمخه، موقعه۔

**ـــ جوړول**:۔اص، وسيله جوړول، واسطه جوړول، سفارش پيدا کول۔

**را ايستل** :۔ اص ، موقعه پيدا کول ، طريقه يا لاره جوړول ، سفارشي پيدا کول۔

**ذَقوم** :۔ (ذَ+قُوْ+مْ)، [ع ، اس ، مذ] ، يو تريخ بُوټے۔

د ذوقوم بُوټي له هر خواټولوي
نادانه تۀ تري نه گلقند جوړوې (صادق الله اورکزے)

**ذکر** :۔ (ذِ + کَ +رْ) [ع ، اس ، مذ ، وا ، ج: ذکرونه] ، (۱) ياد۔ (۲) بيان، خبره

ذکر ستا د تنکي خُولې دے
رنـګيـنــه پـــري پيــکر (خوشحال)

(۳) عبادت، وظيفه۔

**ـــ خبر** :۔اص، دَ چا په حقله بنۀ خبره ۔

**ـــ راتلل**:۔اص ،د چا خبره کېدل، د چا په باره کښې څۀ بيان کېدل

**ـــ فکر** :۔اص، (۱) خيال۔(۲) ياد۔(۳) د خدا ے عبادت۔

زۀ يؤ دم داستا له غمه بې غـم نۀ يم
بې غم ستا له ذکر فکره يؤ دم نۀ يم (رحمٰن)

**ـــ کول** :۔اص، (۱) بيانول (۲) د چا په حقلـه خبره کـول (۳) عبـادت کـول، وظيفه کول۔

**ـــ کېدل** :۔ اص، (۱) بيانېدل۔(۲) د چا پـه حقله خبره کېدل۔(۳) عبادت کېدل، وظيفه کېدل۔

**ـــ مذکُور** :۔اص، خبري اترې،بيان، وينا۔

**په ذکر مشغولېدل** :۔اص ، عبادت شروع کـول ، وظيفـه کـول ، د خدا ے ياد کول۔

يؤ ساعت د خدا ے په ذکر مشغول نۀ شوې
تمـام عمـــر دخپـل ځــان په غم مشغول (رحمٰن)

**ذکر** :۔ (ذَ+کَ+رْ) ، [ع ، اس ، مذ] ، غينې، غين، آله تناسل، آلت، د سړي د وړوبولو اندام۔

**ذکريـا**:۔ (ذَ+کَ+رِيْ+يـا) [ع ، اس معرفـه] ، ذکريـا عليـه السّـلام ، د يـؤ مشهور پيغمبر نُوم چې په قرآن کښې ئې ذکر راغلے دے۔

**ذَلالـت** :۔ (ذَ+لا+لَ+تْ) ، [ع ، اس ، مـؤ] ،بې عزتـي، تـوهين، سـپکاوے، کمينه توب۔

**ذلت**:۔ (ذِ+لْ+لَ+تْ) [ع ، اس ، مذ] ، بې عزّتي ،سپکاوے، ذليل توب۔

**ذليـل** :۔ (ذَ+لـيْ+لْ)، [ع ، اس ، مـذ ، وا ، ج: ذلـيلان (مـؤ ، وا: ذليلـه ، ج: ذليلې] ، (۱) سپک، کمينه، رذيل۔

په دُنيا څۀ رنګ ذليل شو
چې رهبر ئې عزازيـل شو (صادق الله اورکزے)

(۲) وران، خراب۔

چې عزيز ئې په خپل فضل و په کرم کړل
چـــار بـه نـۀ شي د هغو چېرې ذليله (خوشحال)

**ذليـل تـوب** :۔ (ذليـل+تو+بْ)، [پ ، اس ، مـذ] ، ذليـل تيـا ، ذليـل والـے، سپکاوے، کيمنه توب۔

**ذليل تيا** :۔ (ذليـل+تَ+يا) [ (پ ، اس ، مؤ] ، و۔ ذليل توب۔

**ذليل والے** :۔ (ذليـل +وا+لَے) [پ ، اس ، مذ] ،و ۔ ذليل توب۔

**ذليلول**:۔ (ذ+ لِيْ + لَ + و + لْ) [پ ، مص متا] ، بې عزته کول، سپکول، بد بد رټل۔

**ذليلونه**:۔ (ذَ + لِيْ + لَ+و+نَه) [پ ، حمص] ،بې عزتـه کونـه، سپکونه، بدبـد رټنه۔

**ذليلووُنکے** :۔(ذَ+لِيْ+لَ+وُوْ+نْ+کَے) [پ ، فاع ، مذ ، وا ، ج: ذليلووُنکي ، مؤ: ذليلووُنکې] ،بې عزته کووُنکے، سپکووُنکے، بدبدرټوُنکے۔

**ذليلېـدل** :۔ (ذَ+لِيْ+لـې+د+لْ)، [پ ، مـص لا] ، بـې عزتـه کېـدل، سـپکېدل، بدبد رټلے کېدل۔

**ذليلېدنـه** :۔ (ذَ+لِيْ+لې+د+نَـه)، [پ ، حمـص] ، ذليلېـدۀ، بـې عزّتـه کېدنـه، سپکېدنه، بد بد رټلے کېدنه۔

**ذليلېدوُنکے** :۔(ذَ+لِيْ+لې+دُوْ+نْ+کَے) ،[پ ، مف ، مذ ، وا ، ج: ذليلېدوُنکي مؤ: ذليلېدوُنکې] ،بې عزّته کېدوُنکے، سپکېدوُنکے، بد بد رټلے کېدوُنکے۔

**ذليلېدۀ**:۔(ذَ+لِيْ+لې+ده،)، [پ ، حمص] ، و۔ذليلېدنه۔

**ذَم** :۔ (ذَ+مْ)، [ع ، اس ، مذ] ، عيب، بد وئيل، غندنه۔

ذم د خپلو د پـــردو راته معلوم شۀ
که هر څو ساتۀ خپل ځان له ذمه ما (خوشحال)

**ـــ کول** :۔ اص ،د چا بد وئيل، غندنه کول۔

**ذِمّه**:۔ (ذِ+مْ+مَه) [ع ، اس ، مؤ] ، ذيمه ،وعده، قول، لوظ، په سراخستل۔

**ـــ اخستل** :۔ اص، په خپل سرمنل، وعده کول۔

**په ذمه کول** :۔ اص، چاته سپارل۔

**ذمـه دار** :۔ (ذمـه+دا+رْ)[فاتر، اس ص ، مـذ ، وا، (مـؤ ، وا: ذمـه داره ، ج: ذمه دارې] (۱) جواب ورکووُنے، ضامن، ذمه وار(۲) معتبر، پوخ۔

**ذمـه داري** :۔ (ذمـه+دا+رِيْ)، [فـا، اس ، مـؤ] ، (۱) ضـمانت، ضـامن کېـدۀ۔ (۲) ذمه واري، د فرض احساس۔

**ذِمّي** :۔ (ذِ+مْ+ميْ)، [ع ، اس ، مـذ ، وا ، ج: ذميـان] ، هغـه غېـر مسـلمان چې په يؤ اسلامي ملک کښې اوسي يؤ مقرر ټېکس چې جذيـه ورتـه وائـي پرېکـوي اؤ د هغـه د سر اؤ د مـال حفاظت د اسلامي حکومت فرض وي۔

**ذُواضعاف اقل** :۔ (ذُوْ+اَ+ضْ+عا+فْ+اَ+قَ+لْ)، [ع ، اس ، مذ] ، هغه يؤ عـدد چې پـه يـؤ څو اعـدادو پـوره پـوره تقسيم شـي ،دا پـه حسـاب کتـاب کښې پکارېږي۔

**ذُوالجــلال**:۔ (ذُوْ + لْ + جَ + لاَ + لْ) [ع ، اس ، ص ، مـذ] ، د جـلال خاونـد ، خدا ے پاک۔

د چانه پربدل نـۀ وو سپاهيان د ذوالجلال
په حق باندې قربان شولو په شان د پتنګانو (پرېشان)

**ذُوالجناح** :۔ (ذُوْ+لْ+جِ+نا+حْ) [ع ، اس ، ص ، مـذ] ، (۱) د ځانګوُنو يـا وزرو خاوند۔(۲) د حضرت امام حسېن رضى الله تعالى عنه د آس نُوم۔

**ذُوالفقـار** :۔ (ذُوْ+لْ+فَ+قـا+رْ)، [ع ، اس ، ص ، مـذ] ، د حضـرت علـي کـرم الله وجهه تُوره۔

هـــر نــګاه د دلـــبرانـــو ذوالفـقار دے
هر چې غوڅ په ذوالفقار وي څۀ به خوب کا (رحمٰن)

**ذوالقـافيتين** :۔ (ذُوْ + لْ + قا+فِ+يَـه +تَـې+نْ ، [ع ، اس ، ص] ، دوه قـافيې لرُونکے غزل۔

**ذُوالقرنين**:۔(ذُوْ+لْ+قَ+رْ+نَې+نْ)،[ع ، اِس ، ص ، مذ] ،(۱) د دؤو قرنُونو يا

ښکرُونو خاوند.(۲) د سکندربادشاه لقب چې سکندر ذُوالقرنېن ورته وائي، دا د مقدوینه سکندرنهٔ دے.

**ذُوالقعــده** :. (ذُوْ+لْ+قَ+عْ+دَه) ،[ع ، اس معرفــه ، مــؤ] ،د هجــري کــال یوولسمه میاشت ،ذي قعد.

**ذوالنُّــورېن** :. (ذُوْ+نْ+نُــو+رَې+نْ) ،[ع ، اس ، ص ، مــذ] ، د دوؤ نُورونــو خاوند ، دا لقب حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه ته ورکړے شوے دے ځکه چې هغوي باندې د رسول پاک صلي الله علېه وسلم دوه لُوڼه وادهٔ شوې وې چې اوله بي بي ئې وفات شوه نو بیا حضور پاک صلي الله علېه وسلم خپله بله لُور ورته وادهٔ کړه.

**ذوق** :. (ذَ+وْ+قْ)، [ع ، اس ، مذ] ، خوند ، شوق ، لُطف ، مزه.

په هر څهٔ چې غم غلط شي واړه ذوق دے
که پــه فرد که په شطرنج وي که په ښکار (خوشحال)

**ـــــ اؤشوق** :. اِص، په خوند ، په مزه، په مینه .

پــه څهٔ ذوق اؤ شوق به ساه له هغو خېژي
چې په سر پورې ئې ناست په بالین ته ئي (حمید)

**ـــــ لرل** :. اِص، د یؤ څیز نه د لطف یا خوند اخستو شوق لرل.

**ذومعنــي**:. (ذُوْ + مَ + عْ + نِـيْ )[ع ، ص] ، دوه معنیــز ، هغــه خبــره چــې ګڼې معنې لري.

**ذهانت**:. ( ذَ + ها + نَ + تْ )[ع ، اس ، مـؤ] ، هوښـیارتیا ، ځیرکـي، د ذهـن تېزوالے.

**ذهن** :. (ذِ + هْ + نْ ) ،[ع ، س ،مذ ، وا ،ج: ذهنُونه] ، (۱) فکر ، خیال، پوهه

زما د ذهن په دنیا کښې پسرلي ښکاره شول
الله دې وکاچې قسمت زما ستومانه نهٔ شي (پرېشان خټک)

(۲) یاد ، حافظه.

**ـــــ جنګول** :. اِص، خیال کول، فکر کول.

**ـــــ جنګېدل** :. اِص، خیال رسېدل، پوهه کېدل.

**ـــــ کښې پربوتل** :. اِص، په ذهن کښې راتلل.

**ـــــ کښې کښېناستل** :. اِص، پــه مـازغو کښـې راتلـل، پـه څـهٔ بانـدې ښـهٔ پوهېدل، څهٔ خبره تر ډېره وخته یاده پاتې کېدل.

**ـــــ کښې کښېنول** :. اِص ،یادَول، خبره یاده ساتل.

**په ذهن زور اچول** :. اِص ،خبره رایادَول، مازغهٔ جنګول.

**په ذهن کښې راتلل** :. اِص ،پوهېدل، خبره ذهن ته پرېوتل، یادېدل.

**له ذهنه وتل** :. اِص ،هېرېدل، یاد نهٔ پاتې کېدل.

**ذهـن نشـین** :. (ذِهن+نَ+شِـيْ +نْ)، [فـا ، اِس ، ص ، مـذ] ، یـاد ، پـه مـازغو کښې ناست.

**ـــــ کول** :. اِص، یادول، په مازغو کښې کښېنول.

**ـــــ کېدل** :. اِص ، یادېدل، په مازغو کښې کښېناستل.

**ذهنـي**:.(ذِ +هْ+نِـيْ) [ع ، ص] ، د ذهـن سره تعلـق لـروُنکے ، دمـاغي، عقلـي، خیـالي.

**ذهــین** :. (ذَ+هـيْ+نْ) ،[ع ، اس ، ص ، مـذ ، (مـو ، وا: ذهینـه ، ج: ذهینـې] ، پوهه، ځیرک ، هوښیار ، قابل.

**ذهین توب** :. (ذهین+تو+بْ)، [پ ، اس ، مذ] ، هوښیارتوب، ځیرک والے، ذهین تیا.

**ذهین تیا**:. (ذهین+تْ+یا) [پ ، اس ، مؤ] ، و- ذهین توب.

**ذیـابیطس** :. (ذِ+یا+بِيْ+طُ+سْ)، [ع ،اس معرفه ، مذ] ، د شکرې مرض، هغه بیماري چې په تشو بولو کښې د بدن نه شکره راوځي.

**ذي الحــج** :. (ذِيْ+لْ+حَ+جْ)، [ع ، اس معرفــه] ، د هجــري کــال دولســمه میاشت چې پکښې حج کولے شي.

**ذي قعد**:. (ذِيْ+قَ+عْ+دْ)، [ع ، اس معرفه] ، و - ذوالقعده.

**ذېل** :. (ذَيْ+لْ) ،[ع ، اس] ، (۱) لاندینۍ حصّه، هغـه څـهٔ چې لاندې لیکلي شوي وي.(۲) لمن.

**ذېلـدار** :. (ذَيْ+لْ+دا+رْ) ،[فـا ، اس ، مـذ ، وا ، ج: ذېلـداران] ، یـؤ سـرکاري عهدېدار چې تر هغه لاندې یؤ څو کلي وي.

**ذیمه** :. (ذِيْ+مَه)، [پ ، اس ، مؤ] ، و ذمه.

◈◈◈

# ر

**ر**:- (رې)[ع.اِس.مؤ.وا.ج: رې ګانې) د پښتو ژبې د (الف ـ ے) د پټۍ شپاړسم توری دے. دابجد و په حساب ئې اعداد دوه سوه جوړېږي.

**را**:-(را) [پ. حرف] (۱) راکړه. روکه (۲) راته. ماته. (۳) دا توکي د سابقې په طور استعمالېږي. لکه راکول. راڅخه وغېره.

ګـــوره څـــۀ کـــړې ناپســـندې بـــه راؤکـــا
چـــې کـــج رو فلـــک اختـــه دے پـــه رفتـــار کـــج

**راچول**:- (را+ آ+ چ+ و+ ل) [پ.مص مت] (۱) راګذارول . راغورځول. (۲) را دو کول. راپه منډه کېدل.

**راچونه**:(را+ا+چَ+و+نَه)[پ.حص](۱)راګذارونه.راغورځونه.(۲)رادَوکونه. رامنډه کونه.

**راچوونکے**:(را+ا+چ+وو+ن+کے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:راا‌چوونکي.مؤ:راا‌چوونکې].
(۱)راګذاروونکے.راغورځوونکے(۲)رادَوکوونکے.رامنډه کوونکے.

**راخيستل**: (را+ا+خي+س+ ت + ل) [پ. مص مت]. (۱) د خپل ځان دپاره څۀ څيز راوچتول (۲) د متکلم دپاره څۀ راوچتول (۳) څۀ شے په بيعه اخېستل (۴) شروع کول ـ بيانول.

زۀ وتـــا وتـــه د ستا لـــه جوره ژاړم
تۀ راواخلې سل ګېلې نادرې نورې     رحمٰن بابا

**راخيستنګ**:(را+ا+خي+س+ت+ن+ګ)[اَف:پ(قاموس).حمص]و----- راخسته.

**راخيستنه**:(را+ا+خي+س+ت+نه)[پ.حمص].(۱)راا‌خيستنګ.راا‌خيسته.د خپل ځان دپاره څۀ څيز را اوچتونه. (۲) د متکلم د پاره څۀ را اوچتونه (۳) څۀ شے په بيعه اخېستنه.

**راخيستونکے**:(را+خي+س+تو+ن+کے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:راا‌خستونکي.مؤ: راخيستونکې] (۱) د خپل ځان د پاره څۀ څيز راا‌وچتوونکے. (۲) د متکلم د پاره څۀ راا‌وچتونکے (۳) څۀ شے په بيعه اخېستونکے.

**راخيسته**:- (را+ا+خي+س+ته)[پ. حمص] و_____راا‌خيستنه.

**راخيستے**:-(را+ا+خي+س+تے)[پ.مف.مذ.وا.ج: راا‌خيستي.مؤ: راا‌خستې] (۱) د خپل ځان د پاره څۀ څيز را اوچت کړے (۲) د متکلم د پاره څۀ را اوچت کړے. (۳) څۀ شے به بيعه اخستے.

**راستول**: ـ (را+ا+س+ت+و+ل) [پ. مص مت]. رالېږل.

**راستولے**:-(را+اَ+س+ت+و+لے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راستولي.مؤ:راا‌ستولې.- رالېږلے

**راستونه**:-(را+ا+س+ت+و+نه) [پ.حمص]. رالېږنه.

**راستوونکے**:-(را+ا+س+ت+وو+ن +کے) [پ. فا. مذ. وا. ج: راا‌ستوونکي. مؤ: را استوونکې] . رالېږونکے.

**رايستل**:(را+اي+س+ت+ل)[پ.مص.مف.مذ.وا.ج:راا‌يستلي.مؤ :رايستلې] را بهر کړے. بهرته راوکښلے. څرګند کړے.

**رايستنګ**:-(را+اي+س+ت+ن+ ګ) [اَف: پ (قاموس). حمص].رايستنه.

**رايستنه**:-(را+ي+س+ت+نه) [پ. حمص] رايستنګ. رايسته. رابهر کونه. بحرته راوکښنه ـ څرګندونه.

**رايستونکے**:-(را+اي+س+تو+ن+کے) [پ.فاع. مذ. وا. ج: رايستونکي. مؤ: رايستونکې]. رابهر کوونکے. بهرته راوکښونکے. څرګندوونکے.

**رايسته** :- (را + اي + س + ته) [پ. حمص] و _____راا‌يستنه.

**رايسته** :-(را+ي+س+ته)[پ-حرف-مؤ] دېخوا-په دې لور- دې طرف – ايلې.

**رايسته کول**:- اِص- په د يخوا کول – خپل ځان ته رانژدې کول. راړول.

**کېدل**:- اِص. په ديخوا کېدل. په دې لور کېدل. ځان طرف ته کېدل.

**رابر څېر**:(را+ب+ر+څي+ر)[پ.ص] څرګند.ظاهر. ښکاره. په ميدان. په ډاګه.

ونـــړاوۀ سد د سکندر ځو ځو ما ځو ځو
يا د يار له مخه خال و خط شو رابر څير     (حميد)

**_____کول**:-اص څرګندول.ظاهرول.ښکاره کول.ميدان ته کول.په ډاګه کول.

**_____ کېدل**:-اِص.څرګندېدل.ظاهرېدل. ښکاره کېدل. ميدان ته کېدل. په ډاګه کېدل.

**رابطه**:-(را+بِ+ َه)[ع-اِس-مؤ-ج:رابطې] .تړون-تعلق-راشه درشه-لېدل کتل.

**-------------کېدل**:-اِص.تعلق جوړېدل-تړون پېدا کېدل.راشه درشه پېدا کېدل.

**_____کول**:- (لو+ل) اِص. تعلق لرل. راشه درشه کول.

**رابعه**:-(را+ب+عَه)[ع-ص-مؤ] (۱) څلورمه (۲) د مسلمانانو د زناناو يو نوم.

**رابلل**:-(را+ب+ل+ل)[پ.مص مت]رابولل.راغوښتل.بلنه ورکول.دعوت ورکول.

**رابللے**:(را+ب+ل+لے)[پ.مف.مذ.وا.ج:رابللي.مؤ:رابللې].رابوللے. راغوښتلے دعوت يا بلنه ورکړے.

**رابلنه**:-(را+ب+ل+نه)[پ.حمص] .رابولنه.راغوښتنه. بلنه ورکونه. دعوت ورکونه.

**رابلونکے**:-(را+ب+لو+ن+کے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:رابلونکي.مؤ:رابلونکې]. رابولونکے. راغوښتونکے. بلنه ورکوونکے. دعوت ورکوونکے.

**رابوللے**:-(را+بو+ل+لے)[اَف:پ(قاموس).مف.وا.ج:رابوللي.مؤ: رابوللې]. و-------- رابلونکے.

**رابولونکے**:-(را+بو+لو+ن+کے)[اَف:پ (قاموس).فاع. مذ. وا. ج: رابولونکي. مؤ: رابولونکې]. و _____رابلونکے.

**رابه سي**:-(را+به+سي)[پ.فع]. رابه شي. ځان به راورسوي. دراتلو امکان ئې شته.

**رابه شي**:- (را + به + شِي) [پ.فع]. و _____رابه شي.

**رابيا**:- (را+ب+يا) [اف:پ (قاموس) اِس.مؤ.وا..ج: رابياوې]. داويو دوه جوړه مشکونه چې په خر، اس يا ټټو د يو ځاے نه بل ځاے ته وړلے شي.

**رابيرته**:- (را+ب+ي+ر+ته)[پ.ص] (۱) په دې خوا. په دې طرف. رانژدې. (۲) جدا. بيل.

------ **کول**: - اص. (۱) دیخوا کول. رانژدې کول. (۲) جدا کول. رابېلول.

------ **کېدل**: - اص. (۱) دیخوا کېدل. رانژدې کېدل. (۲) جدا کېدل. رابېلېدل.

**رابیل**: - (را+بي+ل)[پ.اس. مذ] (۱) رامبېل-چمبېل- (۲) راجدا- یوخوا.

**راپ**: - (را+ پ)[اَف: پ (قاموس. اِس مذ]. یو بوټی چې د هنج په شان بوي لري او زیړ ګل لري. د ګټ په غوښه ئې دوړوي چې سخانه شي اوښه بوي ترینه راخېژي.

**راپاڅول**: - (را+پا+څ+ و + ل)[مص مت]. (۱) د خوبه راببدارول. راوېښول. (۲) څوک څهٔ معاملې یا قصې ته تیارول. (۳) راولاړول.

**راپاڅونه**: -(را+پا+څ+و+نه)[پ. حمص].(۱) د خوب نه راببدارونه. راوېښېدنه (۲) څوک څهٔ معاملې یا قصې ته تیارونه. (۳) راولاړونه.

**راپاڅوونکی**: -(را+پا+ت+سه+وو+ن+کی)[پ.فاع. مذ.وا. ج: راپاڅوونکي. مؤ: راپاڅونکې]. (۱) د خوب نه راببدار کوونکی. ویښوونکی. (۲) څوک د څهٔ معاملې د پاره تیاروونکی. (۳) راولاړوونکی.

**راپاڅېدل**: -(را+پا+څې+د+ل)[پ.مصلا]. (۱) د خوب نه راببدارېدل. ویښېدل. (۲) راولاړېدل. (۳) څهٔ معاملې یا جګړې د پاره راوچتېدل.

**راپاڅېدونکی**: (را+پا+ت+س+ي+دو+ن+کی)[پ.فاع.مذ.وا.ج:راپاڅېدونکي. مؤ: راپاڅېدوونکې].(۱)دخوب نه راببدارېدوونکی ویښېدونکی. (۲) راولاړېدونکی. (۳) څهٔ معاملې یا جګړې د پاره اوچتېدونکی.

**راپاڅېدنه**: -(را+پا+څي+د+نه)[پ.حمص](۱)دخوب نه راببدارېدنه. وېښېدنه راپاڅېدهٔ.(۲) راولاړېدنه (۳) څهٔ معاملې یا جګړې د پاره راوچتېدنه.

**راپاڅېدهٔ**: - (را+پا+څې+ده)[پ.حمص] و ____ راپاڅېدنه.

**راپارول**: -(را+پا+ر+و+ل)[پ. مص مت] راوچتول. څوک څهٔ کار ته تیارول. غصه کول.

**راپارونه**: - (را+پا+ر+و+نه)[پ. حمص]. راوچتونه. څوک څهٔ کار ته تیارونه. غصه کونه.

**راپاروونکی**: (را+پا+ر+وو+ن+کی)[پ.فاع.مذ. وا.ج.راپاروونکي.مؤ: راپاروونکې]راوچتونکی. څوک څهٔ کار ته تیاروونکی. غصه کوونکی.

**راپارېدل**: -( را+پا+ري+د+ل)[پ.مص لا]. رااوچتېدل.څهٔ کار ته تیارېدل. غصه کېدل.

**راپارېدنه**: -(را+پا+ر+ي+د+نه)[پ.حمص]رااوچتېدنه. څهٔ کار ته تیارېدنه. غصه کېدنه.

**راپارېدونکی**: (را+پا+رې+دو+ن+کی)[پ.مف.مذ.وا.ج:راپارېدونکي.مؤ: راپارېدونکې]راوچتېدونکی. څهٔ کارته تیارېدونکی. غصه کېدونکی.

**راپرتاب**: - (را+پ+ر+تا+ب)[پ.اِس. مذ]. بېدار. ویښ. راپاڅېدل.

د پـــائلو د شـــنائی ژرنګهـــار شـــهٔ
زهٔ لــه خوبــه راپرتــاب شــوم ډېــر ویــره

**راپرزول**: - (را+پ+ر+ز+و+ل)[پ.مص مت]. (۱)راغورځول. په مزکه راوېشتل. پرول. لرول. (۲) شرمول. بې عزته کول. سپکول.

**راپرزونه**: -(را+پ+ر+ز+و+نه)[پ. حمص].(۱) راغورځونه. په مزکه راوېشتنه. پرونه. لرونه. (۲) شومونه. بې عزته کونه. سپکونه.

**راپرزوونکی**: - (را+پ+ر+ز+وو+ن+ کی)[پ. فاع. مذ. و. ج: راپرزوونکي. مؤ: راپرزوونکې]. (۱) راغورځوونکی. په مزکه راوېشتونکی. پرووونکی. لرونکی. (۲) شرمونکی. بې عزته کوونکی. سپکوونکی.

**راپرزېدل**: -(را+په+ر+زے+د+ل) [پ.مص لا] (۱) راغورځېدل. په مزکه راوېشتلے کېدل. پرېدل. لرېدل. (۲) شرمېدل. بې عزته کېدل.سپکېدل.

**راپرزېدنه**: -(را+پ+ر+زے+د+نه)[پ.حمص] (۱) راغورځېدنه. په مزکه راوېشتلے کېدنه. پرېدنه. لرېدنه. راپرزېدهٔ. (۲) شومېدنه. بې عزته کېدنه. سپکېدنه.

**راپرزېدونکی**: (را+پ+ر+زي+دو+ن+کی)[پ.مف.وا.ج. راپرزېدونکي.مؤ: راپرزېدونکې] (۱) راغورځېدونکی- په مزکه راوېشتلے کېدونکی- پرېدونکی.لرېدونکی.(۲) شرمېدونکی.بېعزته کېدونکی. سپکېدونکی.

**راپرزېدهٔ**: - (را+پ+ر+ زې+ ده)[پ.حمص]. و ____ راپرزېدنه.

**راپرېستل**: - (را+پ+ر+ې+ س+ ت+ ل)[پ. مص مت]. راپرزول. راغورځول. په مزکه ویشتل.

**راپرېستلې**: -(را+پ+ر+ې + س + ت + لې)[پ. مف. مذ. وا. ج: راپرېستلي. مؤ: راپرېستلې]. راپرزولې. راغورځولې. په مزکه ویشتلې.

**راپرېستنه**: - (را+ پ+ر+ې+ س+ ت + نه)[پ. حمص] راپرزونه. راغورځونه. په مزکه ویشتنه.

**راپرېستونکی**: (را+پ+ر+ې+س+تو+ن+کی)[پ.فاع.مذ.وا.ج:راپرېستونکي.مؤ : راپرېستونکې]. راپرزوونکی. راغورځوونکی. په مزکه ویشتونکی.

**راپورته**: - (را+پو+ر+ ته)[پ.ص]. (۱) پاس راوچت (۲) راپاڅېدلے. ویښ. (۳) تیار- بېدار.

----- **کول**: -اص. (۱) پاس راوچتول. (۲) څهٔ کار ته څوک پارول یا تیارول. (۳) پاڅول. راوېښول.

---- **کېدل**: - اص.(۱) پاس راوچتېدل (۲) تیارېدل. راپارېدل (۳) راپا څېدل. ویښېدل

**راپورې**: - (را+پو+ رې)[پ.ص]. (۱) په دېخوا (۲) په ماباندې. زما په ذمه. (۳) راسره نژدې. (۴) بند کړے.

____ **وتل**: - اص. دسیندیا خوړ دبلې غاړې نه دې غاړې ته راتلل.

**دروازه راپورې کول**: - اص. ور رابندول.

**راپورې خوا**: -(راپورې+خوا)[پ.ص]. راپورې غاړه. دسیند یا خوړ په دې طرف.

**راپورې غاړه**: - (راپورې+ غا+ ړه)[پ.ص]. و ____ راپورې خوا.

**راپورې کول**: -(را+پو+رې+ک+و+ل) [پ. ] (۱) څوک د سیند یا خوړ د هغې غاړې نه دې غاړې ته رابوول. (۲) وربندول.

**راپیرل**: - (را+پے+ر+ل)[پ.مص مت] (۱) راپیرودل. د چا دپاره څهٔ اخېستل. (۲) د چا دپاره کټ یا کرسی بوتل.

**راپیرودل**: - (را+ پې+ رو+د+ل)[پ.مص مت] و ____ راپېرل.

**راپېښه**: -(را+ پ+ې + شَه یا خَه)[پ.فع] (۱) په سر راغلے لانجه. (۲) راتلنه. حاضرېدنه.

____ **کول**: - اص. دچالیدوته راپېښېدل یا راتلل.

**راپېښېدل**: - (را+پې+ شي یا خې+د+ل)[پ. مص لا]. (۱) په چا څهٔ لانجه راتلل. (۲) د چالیدوکتو ته راتلل.

**راپېښېدنه**: - (را+پې+شي یا خې+د+نَه)[پ.حمص].(۱) څهٔ لانجه په سر راتلنه. (۲) د چالیدوته حاضرېدنه.

**راپېښېدونکی**: -(را+پ+ې+شي+یاخې+دو+ن+کی)[پ.مف.مذ.وا.ج.راپېښېدونکي.مؤ: راپېښېدونکې]. د چا لیدو ته راتلونکی.

**راتب**: -(را+ت+ب)[ع.اِس.مذ]. وظیفه. خوراکه. هغه څهٔ چې د خوراک دپاره هره ورځ ورکولے شي.

د سـورلې هُنر ئې اوښایهٔ وماته
ۂ تیمار او په راتـب ئې اوساتم     خوشحال

____ **تړل**: - اص.وظیفه مقررول. خوراکه ورکول. راتب لګول.

____ **لګول**: - اص.و ____ راتب تړل.

**راتب خور**: - (راتب + خو + ر)[فاتر.اِس ص. مذ]. وظیفه خور.

**راتګ:** - (را+تَ+ګ)[پ. حمص]. راتلل. راتلنه. راتلنګ. راتلۀ.

**راتلل:** - (را+ت+ل+ل)[پ. مص مت]. و ــــ راتګ.

د آشنا د هجر هسې سخت ساعت دے
لــکه راشي پـــه واتـــۀ د صـورت ساه حميد

**راتلنګ:** -(را+ت+ل+ن+ګ)[اَف: پ (قاموس). حمص]. و ----راتګ.

**راتلنه:** - (را+ت+ل+نه)[پ.حمص]. و ــــــ راتګ.

د بهـــار ګلـــزاره بنۀ ئې خوي دې بد دے
چې راتلنه يو څو ورځې په درست کال کړې خوشحال

**راتلونکے:** (را+ت+لو+ن+کے)[پ. فاع . مذ . وا. ج: راتلونکي. مؤ: راتلونکې]. حاضرېدونے. يو ځاے ته رارسېدونے. راتلونے.

**راتلونے:** (را+ت+لو-نے)[پ. فاع. مذ. وا. ج: راتلوني. مؤ: راتلونې]و ــــ راتلونکے.

**راتله:** - (را+ت+له)[پ. حمص]. و ــــ راتګ.

بيا راتلۀ دې دې جهان ته بل وار نشته
بــل وار نشته بــل وار نشته وار دے دا رحمٰن بابا

**راته:** - (را + تَه)[پ.حرف]. ماته. زما دپاره.

**راټول:** - (را+ټو+ل)[پ.ص]. راغونډ. يو ځاے. جمع. ګړد.

**راټولوالے:** -(را+ټو+ل+وا+لے)[اَف: پ (قاموس).اِس.مذ]. راغونډوالے. جمع کېدنه. يو ځاے کېدنه. ګړدېدنه.

**راټولول:** - (را+ټو+ل+و+ل)[پ.مص مت] (۱) راغونډول. يو ځاے کول. جمع کول. ګړدول. (۲) ګټل.

**راټولونه:** - (را+ټو+ل+و+نَه)[پ.حمص]. راغونډونه. جمع کونه. يو ځاے کونه. ګړدونه.

**راټولوونکے:** (را+ټو+ل+وو+ن+کے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:راټولوونکي.مؤ: راټولوونکې]راغونډوونکے.جمع کوونکے.يوځاےکوونکے.ګړدوونکے.

**راټولېدل:** -(را+ټو+لے+د+ل)[پ.مصلا] راغونډېدل. جمع کېدل. ګړدېدل. يو ځاے کېدل.

**راټولېدنه:** - (را+ټو+لے+د+نَه)[پ.حمص] راټولېدۀ. راغونډېدنه. جمع کېدنه. يو ځاے کېدنه. ګړدېدنه.

**راټولېدونکے:** -(را+ټو+لې+دو+ن+کے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راټولېدونکي.مؤ: راټولېدونکې]. راغونډېدونکے. جمع کېدونکے. ګړدېدونکے. يو ځاے کېدونکے.

**راټولېده:** - (را+ ټو+لې+ده)[پ.حمص]و ــــ راټولېدنه.

**راټيټول:** - (را+ټِي+ټ+و+ ل)[پ.مص مت]. (۱) څۀ څيز خپل ځان پلو راکښته کول. (۲) څوک د خپلې خبرې نه اړول (۳) څوک ځان ته موتازه کول. (۴) سختي زياتول. (۵) د څۀ څيز نرخ راکمول.

**راټيټونه:** -(را+ټِي+ټ +و+نه)[پ.حمص] (۱) څۀ څيز خپل ځان پلو راکښته کونه.(۲) څوک د خپلې خبرې نه اړونه. (۳) څوک ځان ته موتازه کونه. (۴) سختي زياتونه.(۵) د څۀ څيز نرخ راکمېدنه.

**راټيټوونکے:** -(را+ټِي+ټ+وو+ن+کے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:راټيټوونکي.مؤ: راټيټوونکې]. (۱) څۀ څيز خپل ځان پلو راکښونکے. (۲) څوک د خپلې خبرې نه اړوونکے. (۳) څوک ځان ته موتازه کوونکے. (۴) سختي زياتوونکے. (۵) د څۀ څيز نرخ راکموونکے.

**راټيټېدل:** -(را+ټِي+ټې+د+ل)[پ.مص لا ] (۱) راکښته کېدل. (۲) خپل ضد پرېښول. (۳) بيلات منل. سرکښته کول. (۴) نرخ کمېدل. (۵) سختي زياتېدل.

**راټيټېدنه:** - (را+ ټِي+ ټې+د+نه)[پ.حمص] (۱) راکښته کېدنه. (۲) خپل ضد پرېښودنه. (۳) بيلات مننه. سرکښته کونه. (۴) نرخ کمېدنه. (۵) سختي زياتېدنه.

**راټيټېدونکے:** -(را+ټِي+ټ+دو+ن+کے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راټيټېدونکي. مؤ: راټيټېدونکې] (۱) راکښته کېدونکے(۲) خپل ضد پرېښودونکے (۳) بيلات منونکے.سرکښته کوونکے.(۴)نرخ کمېدونکے. (۵) سختي زياتېدونکے.

**راج:** - (را + ج)[لا.اِس.مذ]. (۱) بادشاهي. حکومت.

دلته راج ؤ د ګيدړو خو زمري ترې نه په څنګ تلل
دلته ؤ داسې هـــډوکي چې ټنګونه ئې د ننګ تلل پرېشان

**------کول:** - اص.بادشاهي کول.حکومت کول.خوشحاله ژوند تېرول. مزې کول.

خداے چې زۀ و سا ده ريوته محتاج کړم
بې خوارۍ بې سادګۍ به په څۀ راج کړم حميد

**راجا:** -(را+جا)[لا.اِس.مذ.وا. ج:راجاګان]. (۱) بادشاه. (۲) سخي. (۳) بې پروا. (۴) دولتمند. امير.

**راجپوت:** - (راج+ پو+ ت)[لا.اِسم معرفه. مذ. وا. ج: راجپوتان. (مؤ.وا: راجپوته ج: راجپوتانې)]. د راجا اولاد. دراجګانو د خېل نه.

که هر څو په خط نو خط اوکاږي توره
زېر بـــه نۀ کا په دا جهل دا راجپوت حميد

**راجستان:** - (را+جِ+س+تا+ن)[اِس معرفه]. د سندهـ يوه علاقه.

**راجګنه:** - (راج+ګ +ڼ+ه)[پ.اِس.مؤ.وا.ج: راجګنې]. دراجا ښځه.

**راجګول:** - (را+ج+ګ+و+ل) [پ.مص مت] (۱) راوچتول. په پښو اودرول. د کښته نه پورته راوتل. (۲) د خوب نه پاڅول. راويښول.

**راجګونه:** -(را+ج+ګ+و+نَه)[پ.حمص](۱) رااوچتونه.په پښو اودرونه. دکښته نه پورته راوستنه. (۲) د خوب نه پاڅونه. راوېښونه.

**راجګونکے:** (را+ج+ګ+وو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:راجګوونکي.مؤ: راجګوونکې] (۱) رااوچتونکے. په پښو اودروونکے. د کښته نه پورته راوستونکے. (۲) د خوب نه پاڅونکے. راويښوونکے.

**راجګېدل:** -(را+ج+ګې+د+ل)[پ.مص] (۱) رااوچتېدل. په پښو اودرېدل. (۲) د خوب نه پاڅېدل. راويښېدل.

**راجګېدنه:** -(را+ج+ګې+د+نَه)[پ.حمص](۱)راجګېده.راوچتېدنه. په پښو اودرېدنه. (۲) د خوب نه پاڅېدنه. راويښېدنه.

**راجګېدونکے:** -(را+ج+ګې+دو+ن+کَے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راجګېدونکي.مؤ: راجګېدونکې].(۱) رااوچتېدونکے. په پښو اودرېدونکے. (۲) د خوب نه پاڅېدونکے. راويښېدونکے.

**راجګېده:** - (را+ج +ګې+ ده)[پ.حمص] و ــــ راجګېدنه.

**راج ګيري:** -(راج+ګِي+ري)[فا.اِس.مؤ]. مستي توب. ګلکاري. ترکاڼي.

**راجواړه:** -(را+ج+وا+ړَه)[ه.اِس.مؤ.وا.ج:راجواړې] (۱) د راجا د حکومت لاندې علاقه. رجواړه. (۲) ګډه وډه ـ بې ترتيبه معامله.

**راځغستل:** -(را+د+ز+غ+س+ت+ل)[اَف.پ (قاموس). مص مت] د چا پلو په منډه راتلل. راپارېدل.

**راځغستنه:** - (را+ د+ ز+غ +س+ت+ نَه)[اَف: (قاموس).حمص]. د چاپلوپه منډه راتلنه. راپارېدنه.

**راځغستونکے:** -(را+د+ر+غ+س+تو+ن+کَے)[اَف: پ (قاموس). فاع. مذ. وا. ج: راځغستونکي.مؤ:راځغستونکې].د چا پلو په منډه راتلونکے. راپارېدونکے.

**راځنے:** -(را+ د+ ز+ نے)[پ.حرف]. رانه. زماڅخه. د ما څخه.

**راڅوړند**:- ‹را+د+ز+و+ړ+ن+د›[پ.ص.مذ.‹مؤ.وا:راڅوړنده.ج: راڅوړندې›] راللبدلے. رازنګېدلے. اَوېزان.

**راڅه**:- ‹را + و + زَه›[پ.امر]. رادرومه. راروان شه. ماسره ځه.

**راڅي**:- ‹را + د + زِي›[پ.حرف]. رادرومي.

**راچوړول**:-‹را+چو+ړ+و+ل›[پ(مر).مص مت]راڅوړول.راکوزول.لاندې راوستل.

**راچوړونه**:- ‹را + چو+ ړ + و + نَه›[پ (مر) حمص]. راڅوړونه. راکوزونه. لاندې راوستنه.

**راچوړوونکے**:-‹را+چو+ړ+وو+ن+کَے›[پ(مر).فاع.مذ.وا.ج:راچوړوونکي. مؤ: راچوړوونکې]. راڅوړوونکے. راکوزوونکے. لاندې راوستونکے.

**راچوړېدل**:-‹را+ چو+ړے + د + ل›[پ (مر).مص لا]. راڅوړېدل. راکوزېدل لاندې راتلل.

**راچوړېدنه**:-‹را+چو+ړے+د + نَه›[پ(مر)حمص]. راچوړېدۀ. راڅوړېدنه. راکوزېدنه. لاندې راتلنه. راڅوړېده.

**راچوړېدونکے**:‹را+چو+ړے+دو+ن+کَے›[پ(مر).فاع.مذ.وا.ج:راچوړېدونکي.مؤ : راچوړېدونکې]. راڅوړېدونکے. راکوزېدونکے. لاندې راتلونکے.

**راچوړېده**:- ‹را+ چو+ړے + ده›[پ(مر)حمص]و ـــــ راچوړېدنه.

**راڅخه**:- ‹را+ت+س+خه›[پ.حرف]. ‹۱› راسره ‹۲› رانه. زما نه. زما څخه.

خط دې تور حرفونه مخ دې پاڼې د کتاب دي
شغل د کتاب دے بـل کتاب راڅـخـه یورو رحمٰن بابا

**راڅکل**:- ‹را+ت+س+ک+ ل›[پ.مص مت] راڅکول. راکښل. په مزکه راکښل.

**راڅکول**:-‹را+ت+س+ک+و+ل›[پ.مص مت] ‹۱›و-راڅکل.‹۲› راڅڅول. قطره قطره رابهیول.

له خلوته وبازار راڅکول شي
زاهدان و عاشقي په خرڅښو حمید

**راڅکولے**:- ‹را+ ت + س + ک + و + لَے›[پ مف. مذ. وا. ج: راڅکولي. مؤ: راڅکولې] راکښلے. په مزکه را کاږلے.

**راڅکونه**:- ‹را+ت+س+ک+و+نه›[پ.حمص] ‹۱› په مزکه راکښنه. ‹۲› راڅڅونه. قطره قطره رابهوونه.

**راڅکونے**:‹را+ت+س+کو+نے›[اَف:پ(قاموس).اس.مذ.وا.ج:راڅکوني.مو.ج:را څکونې]راڅکوونکے. په مزکه راکښونکے.

**راڅکوونکے**:‹را+ت+س+ک+وو+ن+کَے›[پ.فاع.مذ.وا.ج:راڅکوونکي.مؤ. راڅکـوونکې] ‹۱› و - راڅکـونے. ‹۲› راڅڅـوونکے. قطـره قطـره رابیوونکے.

**راڅکېدل**:- ‹را+ ت+س+کے+د+ل›[پ. مص مت] ‹۱› په مزکه په ښوئېدو ښوئېدو راتلل. ‹۲› راڅڅېدل

**راڅکېدنه**:- ‹را+ت +س+ کے+د+ نَه›[پ.حمص]. ‹۱› راڅکېدۀ. په سزمزکه په ښوئېدو ښوئېدو راتلنه. ‹۲› را څڅېدنه.

**راڅکېدونکے**:‹را+ت+س+کے+دو+ن+کَے›[پ.مف.مذ.وا.ج:راڅکېدونکي.م ؤ: راڅکېدونکې]. ‹۱› په مزکه په ښوئېدو ښوئېدو راتلونکے ‹۲› راڅڅېدونکے.

**راڅکېده**:- ‹را + ت + س + کې + ده›[پ.حمص]و ـــــ راڅکېدنه.

**راڅوړول**:- ‹را+ت + سو +ړ+ و + ل›[پ. مص مت]. و ـــــ راچوړول.

**راڅوړونه**:- ‹را+ ت + سو+ ړ+ و+ نَه›[پ.حمص] و ـــــ راچوړونه.

**راڅوړوونکے**:- ‹را+ت+سو+ړ+ وو+ن+ کے›[پ.فاع.مذ.وا. ج: راڅوړوونکي. مؤ: راڅوړوونکې]. و ـــــ راچوړوونکے.

**راڅوړېدل**:-‹را + ت + سو + ړے + د + ل›[پ.مص لا]. و ـــــ راچوړېدل.

**راڅوړېدنه**:-‹را+ت+سو + ړے + د + نه›[پ.حمص]. و ـــــ راچوړېدنه.

**راڅوړېدونکے**:‹را+ت+سو+ړے+دو+ن+کے›[پ.فاع.مذ.وا.ج:راڅوړېدونکي. مؤ: راڅوړېدونکې]. و ـــــ راچوړېدونکے.

**راڅوړېده**:- ‹را + ت + سو + ړے + دۀ›[پ.حمص]. و ـــــ راچوړېدنه.

**راحت**:- ‹را + ح+ ت›[ع.اس.مذ.وا.ج: راحتونه]. ارام. سوکالي. خوشحالي.

نېک کردار هم نېک عمل هم نېک حویونه
هـــم جنت دے هـــم راحت پـــه دا دنیا رحمٰن بابا

**ـــــ موندل**:- اص.ارام او خوشحالي موندل. سوکه کېدل.

راحت نۀ دے چا موندلے بې زحمته
ستا وفـــا او جفا دواړه منقسم دي رحمٰن بابا

**راخبرول**:- ‹را + خَ + ب + ر + و + ل›[پ.مص مت] خبر ورکول.

**راخبرونه**: – ‹را+خَ + ب +ر+ و+ نَه›[پ.حمص]خبر ورکونه.

**راخبروونکے**:-‹را+خ+ب+ر+وو+ن+کَے›[پ.فاع.مذ.وا.ج.راخبروونکي.مؤ: راخبروونکې]. خبر ورکوونکے.

**راخبرېدل**:-‹را+خ+ب+رے+د+ل›[پ.مص لا] خبر وررسېدل. د حال نه معلومېدل.

**راخبرېدنه**:- ‹را+خَ + ب+رې+ د + نَه›[پ.حمص]. راخبرېده. خبر ور رسېدنه. د حال نه معلومېدنه.

**راخبرېدونکے**:‹را+خَ+ب+رې+دو+ن+کَے›[پ.مف.مذ.وا.ج:راخبرېدونکي. مؤ: راخبرېدونکې]. خبرور رسېدونکے.د حال نه معلومېدونکے.

**راخبرېده**:-‹را+خَ+ ب+رې+ ده›[پ.حمص]راخبرېدنه. خبرور رسېدنه. د حال نه معلومېدنه.

**راخپرول**:- ‹را+خ+پ+ر+و+ ل›[پ.مص مت] راخورول. خپل ځان پلو خورول. تس نس کول.

**راخپرونه**:-‹را+خَ+پ+ر+و+نَه›[پ.حمص]خپل ځان پلوخورونه. راخورونه. تس نس کوونه.

**راخپروونکے**:-‹را+خ+پ+ر+وو+ن+ کَے›[پ.فاع.مذ.وا.ج: راخپروونکي. مؤ: راخپروونکې].خپلځان پلو خوروونکے.راخوروونکے. تس نس کوونکے

**راخپرېدل**:- ‹را+خ + پ + رې+ د+ ل›[پ.مص لا]. راخورېدل. تس نس کېدل.

**راخپرېدنه**:-‹را + خ + پ + دې+ د + نَه›[پ.حمص]. راخبرېدۀ. راخورېدنه. تس نس کېدنه. راخورېده.

**راخپرېدونکے**:-‹را+خ+پ+رې+دو+ن+کَے›[پ.مف.مذ.وا.ج: راخبرېدونکي. مؤ: راخپرېدونکې]. راخورېدونکے. تس نس کېدونکے.

**راخپرېده**:- ‹را+ خ + پ + رې+ ده›[پ.حمص]. و ـــــ راخپرېدنه.

**راختل**:-‹را + خ + ت + ل›[پ.مص لا]. ‹۱› راپوکېدل. ‹۲› پورته راتلل. پاس راتلل. ‹۳› په چا حمله کول.

پـــه تمـــام جهـــان قـــراره قـــراري وه
پـــه حميـــد د غـــم مغـــل رااوخاتـــۀ

**راختلے**:-‹را+خ+ت+لَے›[پ.مف.مذ.وا.ج: راختلي. مؤ:راختلې]. ‹۱› راپوکېدلے. ‹۲› پورته راغلے. پاس راغلے ‹۳› په چا حمله کړې. ‹۴› رابنکاره شوې. راڅرګند شوې.

**راختنه**:- ‹را + خ + ت + نَه›[پ.حمص]. ‹۱› راختـه. راپوکېدنه. ‹۲› پورته را بلنه. پاس راتلنه. ‹۳› په چاحمله کوونه. ‹۴› رابنکاره کېدنه. راڅرګندېدنه.

**راختونکے**:-‹را+خ+تو+ن+ کَے›[پ.مف.مذ.وا.ج:راختونکي. مؤ: راختونکې] ‹۱› راپوکېدونکے. ‹۲› پورته راتلونکے. پاس راتلونکے. ‹۳› په چا حمله کوونکے. ‹۴› رابنکاره کېدونکے. راڅرګندېدونکے.

**راخته**:- (را+خ + ته)[پ.حمص]. و ـــــ راختنه.

**راخلاصول**:- (را+خ + لا + ص+ و+ل)[پ.مص مت] (۱) د قېد نه ازادول. رها کول. (۲) ورلرې کول. (۳) راغورځول.

**راخلاصونه**:- (را + خ + لا+ صَ + و + نَه)[پ.حمص]. (۱) د قېد نه ازادونه. رها کونه. (۲) ورلرې کونه (۳) راغورځونه.

**راخلاصوونکے**:-(را+خ+لا+ص+وو+ن+کَے)[پ. فاع.مذ.وا.ج: را خلاصوونکي. مؤ: راخلاصونکې] (۱) د قېدنه ازادوونکے. رها کوونکے. (۲) ور لرې کوونکے. (۳) راغورځوونکے.

**راخلاصېدل**:- (را+خ+ل+ا+ص+ې+د+ل)[پ.مص لا] (۱) د قېد نه ازادېدل. رها کېدل. (۲) ورلرې کېدل. (۳) راغورځېدل.

**راخلاصېدنه**:- (را + خ + لا + سې + د + نَه)[پ.حمص] (۱) راخلاصېده. د قېد نه ازادېدنه. رها کېدنه (۲) ورلرې کېدنه (۳) راغورځېدنه.

**راخلاصېدونکے**:- (را+خ+لا+سې+دو+ن+کَے)[پ.مف.مذ.وا.ج: راخلاصېدونکي. مؤ: راخلاصېدونکې] (۱) د قېد نه ازادېدونکے. رها کېدونکے. (۲) ورلرې کېدونکے. (۳) راغورځېدونکے.

**راخلاصېده**:- (را+خ + لا + سې+ ده)[پ.حمص]. و ـــــ راخلاصېدنه.

**راخورول**:- (را + خ + و + ر + و + ل)[پ.مص مت] و ـــــ راخپرول.

**راخورونه**:- (را + خ + و + ر + و + نَه)[پ.حمص]. و ـــــ راخپرونه.

**راخوروونکے**:- (را+ خ + و + ر+وو+ ن + کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج: راخوروونکي. مؤ: راخوروونکې]. و ـــــ راخپرېدل.

**راخورېدنه**:-(را+ خ + و + ر+ې+ د + نَه)[پ.حمص]. و ـــــ راخپرېدنه.

**راخورېدونکے**:-(را+خ+و+ر+ې+دو+ن+کَے)[پ.مف.مذ.وا.ج: راخورېدونکي. مؤ: راخورېدونکې]. و ـــــ راخپر ېدونکے.

**راخورېده**:- (را + خ + و + ې + ده)[پ.حمص].و ـــــ راخپرېدنه.

**راخېژول**:- (را +خې+ژ+و+ل)[پ.مص مت] راپورته کول. راوچتول.

**راخېژونه**:- (را+خې+ ژ+و+نَه)[پ.حمص] راپورته کونه. راوچتونه.

**راخېژوونکے**:-(را+خې+ژ+وو+ ن+کے)[پ.فاع.مذ.و.ج: راخېژوونکي. مؤ: راخېژوونکې]. راپورته کوونکے. رااوچتوونکے.

**رادومل**:-(را+د+رو+م+ل)[پ.مص مت]راتلل (دامصدر نن پرون نه استعمالېږي. ولې رادرومه. رادرومي وغيره وئيلے شي)

**رادمخه**:- (را + د+م + خه)[اَف: پ (قاموس).ص]. روړاندې. په مخکښې.

ـــــ **کول**:- اص.راوړاندې کول. مخې ته راوستل.

ـــــ **کېدل**:- اص.راوړاندې کېدل. رامخې ته کېدل.

**راده**:-(را+ده)[اَف:پ (قاموس)اس. مؤ.وا.ج: رادې]. اوږد خط چې هغه عمودي، قوسي يا افقي راکښلے شي.

**راده**:- (را + دَه)[اَف: پ(قاموس).ص] لاره ښوونکے.

**راډ**:-( را+ډ ) [اَنګ اس.مذ.وا.ج: راډونه ](۱) ډنډه (۲) د بجلۍ د رڼا اوږد ډنډه.

**رارسول**:- (را ـ ر + س + و + ل)[پ.مص مت] ځاے پورې راوړل.

**رارسولے**:-(را+ر+س+و+لَے)[پ.مف.مذ.وا.ج: رارسولي. مؤ: رارسولې]. ځاے پورې رابوونه. ځاے پورې راوړنه.

**رارسونه**:- (را+ ر+س+ و+نَه)[پ.حمص]. ځاے پورې رابوونه.

**رارسوونکے**:(را+ر+س+وو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:رارسوونکي.مو:رارسوونکې]ځاے پورې رابوونکے.

**رارسېدل**:- (را+ر+سې+د+ل)[پ.مص لا]. (۱) ځاے پورې راتلل (۲) لاس ته راتلل.

**رارسېدلے**:(را+ر+سې+د+لَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:رارسېدلي.مؤ:رارسېدل. (۱) ځاے پورې راغلے. (۲) لاس ته راغلے.

**رارسېدنه**:- (را+ر+ سې+ د + نَه)[پ.حمص]. (۱) رارسېده. ځاے پورې راتلنه. (۲) لاس ته راتلنه.

**رارسېدونکے**:-(را+ر+سې+ دو + ن + کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج: رارسېدونکي. مؤ: رارسېدونکې]. (۱) ځاے پورې راتلونکے (۲) لاس ته راتلونکے.

**رارسېده**:- (را+ ر + سې + ده)[پ.حمص]. و ـــــ رارسېدنه.

**راړه**:-(را+ړه)[اَف:پ(قاموس).اس.مؤ.وا.ج.راړې]ګډه وډه. ګډلې. **هغه ډوډۍ** چې د قسم قسم غلې د اوړو نه پخه شوې وي.

**راړه**:- (را + رَه)[پ(ګن).اس.مؤ.وا.ج: راړې]. روږه. شور ژوږ.

**راړې وهل**:- (ګن) اص.روږې وهل. شور ژوږ کول.

**راړه**:-(را+ړه)[اَف: پ (قاموس).اس.مؤ.وا.ج.راړې]. بروږه. کټمل.کوتک یا منګڼ په شان چينجے چې زهر لري.

**راز**:- (را+ ز)[اَف:پ(قاموس).اس.مذ]. (۱) يو قسم بوټے چې زيړ ګل لري او جرړې ئې په اوبو کښې خوشتې کړي اوپه ګرمۍ کښې ئې ښخې چې اثرئې يخ دے. (۲) په شان. په رنګ.لکه. په طور.

**راز**:- (را+ ز)[فا.اس.مذ.وا.ج: رازونه]، پټه خبره.

عاشقان و معشوقې سره پوهېږي
دغه راز و نور عالم ته عيان نۀ دے رحمٰن بابا

ـــــ **بيانول**:- اص.د پردې خبره ښکاره کول. پټه خبره په جار کول.

د عشق راز چې هيچا نۀ دے بيان کړے
تـــــرو بـــــه زۀ لـــــه بې بيـــان وايم څۀ رحمٰن بابا

ـــــ**څرګندول**:-اص.راز فاش کول.پټه خبره يا حال ښکاره کول. رازښکاره کول.

ـــــ **څرګندېدل**:- اص. راز ښکاره کېدل. راز فاش کېدل.

ـــــ **ساتل**:- اص.څوک نه بې پردې کول. د چا راز نه ښکاره کول.

ـــــ **ښکاره کول**:- اص.و ـــــ راز څرګندېدل.

ـــــ **ښکاره کېدل**:- اص.و ـــــ راز څرګندېدل.

ـــــ **فاش کول**:- اص.راز څرګندول.

ـــــ **فاش کېدل**:-ا ص.و ـــــ راز څرګندېدل.

د منصور و حـــال ته ګوره حال ئې څۀ شو
خدا ے دې فاش د هيچا نۀ کاندي پټ راز رحمٰن بابا

ـــــ **کښې ساتل**:- اص.يوه خبره پټه ساتل.

د ـــــ **خبرې**:- اص.پټې خبرې. د پردې خبرې.

زۀ نور چـــا وته د راز خبرې نۀ کړم
بې هغو چې موئ مژګان لري دراز رحمٰن بابا

ـــــ**دار**:(راز+دا+ر)[پ.اسص.مذ.وا.ج:رازداران.(مؤ. وا : ازداره.ج : رازدارې] اعتباري. راز ساتونکے.رازدان.

د زړۀ راز و چـــاتـــه نـــۀ بللے بويه
چې دزمکې په مخ نشته راز داران خوشحال

ـــــ **داري**:- (راز+ دا+رِي)[فا.اس.مؤ]. راز ساتنه. پټه خبره نه څرګندونه.

ـــــ **دان**:- (راز+دا+ن)[فا.اس.ص. مذ.وا. (مؤ.وا: رازدانه.ج:رازداران]. لږ ورته ځير شه څۀ خو فکر په پېغام اوکړه
د ژونـــد د حقـــائقو ؤ راز دار شاه لطيف نواز طائر

ـــــ **دانان**: و ـــــ رازدار.

**رازق**:- (را+ ز + ق)[ع.اس فاع.مذ.وا.ج: راز قان(مؤ.وا: رازقه.ج: رازقان)]رزق ورکوونکے. روزي رسان. الله پاک.

خدا ے رازق ګڼې او رزق ګڼې له کسبه
پـــه دا شناخت د ځان ته وائے حق شناس رحمٰن بابا

**رازل**:-(را+ز+ل)[آف:پ(قاموس).مص مت] (۱) ډولے کول. ښکلے کول. سنبالول. جوړول. سنگارول (۲) پالل. عزت ورکول.

**رازلے**:-(را+ز+لَے)[آف:پ(قاموس).مف.مذ.وا.ج:رازلي.مؤ:رازلې](۱) ډولے کړے. ښکلے کړے. جوړ کړے. سنگار کړے. سنبال کړے. (۲) پاللے. عزت ورکړے.

**رازنه**:-(را+ز+نه)[آف:پ(قاموس).حمص](۱) ډولے کوونه. ښکلے کوونه. سنبالونه. سنگار کونه. جوړونه (۲) پالنه. عزت ورکونه.

**رازونکے**:-(را+زو+ن+کَے)[آف:پ(قاموس).فاع.مذ.وا.ج:رازونکي. مؤ:رازونکې] (۱) ډولے کوونکے. ښکلے کوونکے. سنبالوونکے. سنگار کوونکے. (۲) پالونکے. عزت ورکوونکے.

**رازونیاز**:- (راز + و + ن + یا + ز)[فاتر. اس.مذ]. دمینې محبت خبرې.

**راس**:- (را+س)[ع.اس.مذ](۱) د چوبې هغه ټوټه چې څوکه ئې په اوبو کښې تر لرې پورې لاړه وي. (۲) د سندرو یو وزن. (۳) دراست مخفف ښے.

په هور لوري چې ئې مومې پسې درومې
نـۀ پــه چپ لوري صرفه کړې نۀ په راس رحمٰن بابا

**راس المال**:- (را+س+ل+ ما + ل)[ع.اس.مذ]پنگه. اصل سر. د تجارت سرمایه.

**راست**:- (را+س+ ت)[فا.اس.مذ]. (۱) راس. ښے. (۲) سم. بې وټه.. متل:- راست اوسه په لویه لار کښې ملاست اوسه.

نۀ پوهېږم چې پــه کومه لاره درومم
چپ وراست مې رقیبان دي هزارها رحمٰن بابا

**راتلل**:- اص.سم راتلل. موافق راتلل.

**راست باز**:- (راست+با+ز) [فا. اس ص. مذ. وا.ج: راست بازان. (مؤ.وا: راست بازه.ج: راست بازې)]. ربښتونے. ایماندار راستمن.

**راست بازي**:- (راست+با+زي)[فا.اس.مؤ]. ربښتیا. راستي. ایمانداري.

**راستمن**:-(راست+م+ن)[پ.اس.ص.مذ(مؤ.وا:راستمنه.ج:راستمنان)] ربښتونے. ایماندار. چست. راست باز.

**راستنول**:- (را+س+ت+ن+و + ل)[پ.مص مت]. راواپس کول. بیرته راگرځول. واپس راغوښتل. راستون کول.

**راستنونه**:- (را+س+ت+ن + و + نَه)[پ.حمص] راواپس کونه. بیرته راگرځونه. واپس راغوستنه.

**راستنوونکے**:-(را+س+ت+ن+وو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:راستنوونکي.مو راستنوونکې]راواپس کوونکے.بیرته راگرځوونکے.واپس راغوستونکے.

**راستنېدل**:- (را+س+ت+نې+د+ل)[پ.مص لا]. راواپس کېدل. بیرته راگرځېدل. راستون کېدل.

**راستنېدنه**:- (را+س+ ت +نې+د+نه)[پ.حمص]. راستنېده. راواپس کېدنه. بیرته راگرځېدنه.

**راستنېدونکے**(را+س+ت+نې+دو+نکے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راستنېدونکي.مؤ: راستنېدونکې]. راواپس کېدونکے. بیرته راگرځېدونکے.

**راستنېده**:- (را+س+ ت + نې + ده)[پ.حمص]. و ـــــ راستنېدنه.

**راستون**:- (را+س+تو+ن)[پ.اس ص.مذ.وا.ج: راستانه:(مؤ.وا: راستنه. ج: راستنې)]. راواپس شوے. بیرته راغلے.

ـــ **کول**:- اص.و ـــــ راستنول.

ـــ **کېدل**:- اص.و ـــــ راستنېدل.

**راستي**:- (را+س+تي)[فا.اس.مؤ]. و ـــــ راست بازي.

ماوې ورکه شه ستې راستي پکار ده
کـم رسېږې و مطلب ته طلبگار ست علي خان

**راسخ**:- (را+س+خ)[ع.ص.مذ]. پوخ. مضبوط. کلک. صادق. کره.

ـــ **الاعتقاد**:- (را+س+خ+ل+ا+ ع + ت + قا+د)[ع.اس.ص.مذ.مؤ: راسخ الاعتقادې]د پخې عقیدې خاوند.

**راسن**:-(را+س+ن)[پ.انگ: راشن. اس.مذ.وا.ج: راسنونه]. راشن. خوراک.

**راشبېل**:-(را+ش+بې+ل)[پ.اس.مذ وا.ج:راشبېلونه] راشپېل.دلرگې هغه اله چې د غنمو واندې پرې الوځولے شي او غله پرې پاکولے شي. خوې.

**راشپېل**:-(را + ش + پ+ې+ ل)[پ.اس.مذ.وا.ج: راشپېلونه] و ـــــ راشبېل.

**راشتلے**:-(را+ش+ت+لَے)[آف:پ(قاموس).اس.مذ.وا.ج:راشتلي]په درمند کښې پر ته هغه خچنه غله چې اکثر خیرات کولے شي. ریشتلے. ټوپلے.

**راشد**:- (را+ ش+ د)[ع.ص]. پرهېزگار. نېک. په سمه لار تلونکے.

**راشـکې**:-(را+ش+ک+ئې)[پ(ظفر).اس.مؤ]. اورکوټې ډېرې. د خاورو ورکوټې خټې.

**راشن**:- (را + ش + ن)[انگ.اس.مذ.وا.ج:راشنونه]. و ـــــ راسن.

ـــ **بندي**:- (راشن+ بَ + ن + دي)[فاتر.اس.مؤ]. دمقرر راشن نظام. دراشن درس بندوبست.

ـــ **کول**:- اص.د راشن دویشلو نظام جاري کول.

ـــ **کېدل**:- اص.دراشن دوېشلو بندوبست کېدل.

ـــ **کارډ**:-(را+شَ+ن+کا+ر+ډ)[انگ.اس.مذ.وا.ج: راشن کارډونه]. د ډېو نه د راشن اخېستو د اجازت کاغذ چې په کښې د کور د بندیانو تعداد لیکلے وي.

**راشه**:- (را+شۀ) [پ(ب،خ) اس.مؤ.وا.ج:راشې]. په درمند کښې د صفا کړو غنمو ډېرې. رشه.

**راشه**:- (را + شَه)[پ.حرف] د راتلل د امر صیغه. دېخوا یا دلته راشه.

اے زمـا د زړۀ آرامه راشه راشه
سروې قده گل اندامه راشه راشه رحمٰن بابا

ـــ **درشه**:-(را + شَه + دَ + ر + شَه)[پ.ص.مؤ]. دار مدار. بره کړه. تلل راتلل. تگ راتگ.

ـــ **کول**:- اص.تلل راتلل کول. دار مدار کول.

ـــ **کېدل**:- اص.تلل را تلل کېدل. دارمدار کېدل.

**راشے**:- (را+ شَے) [آف: پ (قاموس) اس. مذ] ربېخ. جارو.

**راشي**:- (را + شي)[ع.اس ص] . رشوت خور. بډې خورونکے. بډې خور.

**راشیندل**:-را+شي+ن+د+ل) [پ.مص مت] رالوستل. ځان طرف ته راغورځول. رانوستل.

**راشیندلے**:-(را+شي+ن+دلَے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راشیندلي.مؤ:راشیندلې] رالوستلے. ځان طرف ته راغورځولے. رانوستلے.

**راشیندنه**:-(راشي+ن+د+نه) [پ.حمص] رالوستنه. ځان طرفته راغورځونه. رانوستنه.

**راشیندونکے**:- (را+شي+ن+دو+ن + کَے) [پ. فاع. مذ. وا.ج: راشیندونکي. مؤ. راشیندونکې] رالوستونکے.ځان طرف ته راغورځونکے. رانوستونکے.

**راښکل**:- (را+ ش یا خ + ک + ل)[پ.مص مت] راکښل. راځکول. راکاږل.

چې راښکلې مې پرې غشې د دعاؤ
هغه نخښه مې اونه ویشته خطا شوه رحمٰن بابا

**راښکل**:- (را+ش یا خ + ک +ل) [آف:پ(قاموس) اس.مذ.وا.ج: راښکلونه]. یو قسم غرئیزه ونه.

**راښکو**:- (را+ش یا خ+کو)[آف:پ (قاموس) اس. مذ]. هغه اله چې د تانبې یا دزرو تارونه په کښې اوږده کولے اومزي کولے شي.

**رانبكوبي** :- (را+شياخ+كو+بےِ) [اَف: پ (قاموس) اس. مذ.وا.ج: رانبكوبي] د اوبو مشين. واټرپمپ.

**رانبكودل**:-(را+ ش يا خ+كو+د+ ل)[پ.مص مت]. راكښل. رانبكل. راڅكول.

**رانبكول**:-(را+ياخ+كو+ل)[اَف:پ(قاموس) اس.مذ.وا.ج: رانبكودونه. غانبور. منډاوه.

**راضي**:- (راضِي)[ع.ص]. پخلا. رضا . تيار منونكے. خوشحال.

د بېړۍ په ډوبېدو چې رب راضي شي
بيا مـلاح د زړونـو چرته هلته كار كا رحمٰن بابا

ـــــ **كول**:- اِص.خوشحالول. رضا كول. تيارول پخلا كول.

چې د زړهٔ اخلاص دې نـهٔ لــه معبوده
لاعجب چې ئې راضي كړې له سجوده خوشحال

ـــــ **كېدل**:- ا.ص.خوشحالېدل. رضا كېدل. تيار ېدل. منل پخلا كېدل.

پــه ازار د چـــا راضـــي مـــه شـــه رحمٰـــه
كــه خلاصـے پــه قيامـت غــوارې لــه عذابــه

ـــــ**من**:- (راضِي+ م+ ن)[پ.تر. اِس.ص. مذ]. رضا . خوشحاله. راضي.

ولې نهٔ ئې راضي من په هغه سود
هغه سود چې همېشه لري بهبود صديق

ـــــ **نامه**:- ( راضي + نا + مَه )[فا.اِس.مؤ.وا.ج: راضي نامې ]. روغه. جوړه. هغه ليک چې دواړه فريقه پرې رضا مند وي او معامله ئې فيصله شي.

ـــــ **كول**:- اص. روغه جوړه كول.

ـــــ **كېدل**:- اص. روغه جوړه كېدل.

**راغ**:- (را + غ) [فا اِس. مذ.وا.ج: راغونه] ځنګل. ورشو. راغه. د مزكې شنه ټوټه. مېره.

وچ ګل ګوګل لامدهٔ لېمهٔ دي
د غمـــونـــو بـــاغ او راغ حميد

**راغب**:- (را+غِ + ب) [ع.ص.مذ(مؤ.وا: راغبه.ج: راغبې] خواهشمند چې زړهٔ ئې ورته كېږي. مائل.

ع زهٔ په سل رنګه راغبه بې ته په سل رنګه غائب رحمٰن بابا

**راغب كول**:- اِ.ص. مائل كول. خواهش مند كول. څهٔ ته مخه كول.

ـــ**كېدل**:- اص.مائېلېدل. مائل كېدل. خواهشمند كېدل. څهٔ ته مخه كېدل.

**راغبرګ**:- (را + غ + بَ + ر + ګ)[پ.ص.مذ(مؤ.وا: راغبرګه.ج:راغبرګې] (۱) رابرغ. رانبغ. رابرغد. په شا راستون. (۲) دوه برغه. لاندې ـ قط په قط.

**راغبرګول**:-(را+غ+ب+ر+ګ+و+ل)[پ.مص مت]. (۱) رابرغول. رابرغدول. په شا راستنول (۲) دوه برغده كول. قط په قط كول.

**راغبرګونه**:- (را + غ + بَ + ر + ګ + و + نَه)[پ.حمص]. (۱) رابر غونه. رابر غدونه. په شا راستنونه. (۲) دوه برغده كونه. قط په قط كونه.

**راغبرګوونكے**:-(را+غ+بَ+ر+ګ+وو+ن+كَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج. راغبرګـوونكي. مؤ: راغبر ګوونكې] (۱) را بر غوونكے. رابر غـدوونكے. پــه شــا راستنونكے. (۲) دوه برغده كوونكے. قط په پط كوونكے.

**راغبرګېدل**:- (را+ غ + بَ + ر + ګې + د + ل)[پ.مص لا]. (۱) را بر غبدل. رابر غدېدل. په شا راستنېدل. رانبغېدل. (۲) دوه برغده كېدل. قط په قط كېدل.

**راغبرګېدنــه**:-(را+ غ + بَ+ ر + ګــې + د + نَــه)[پ.حمص]. (۱) راغبرګېـدهٔ. رابرغېدنه. رانبغېدنه. رابر غدېدنه. پـه شا راستنېدنه. (۲) دوه برغـده كېدنه. قط په قط كېدنه.

**راغبر ګېدونكے**:-(را+غ + بَ + ر + ګې+ دو + ن + كَے)[پ.مف.مذ.وا.ج: راغبرګېدونكي. مؤ: راغبر ګېدونكې]. (۱) رابر غبدونكے. رابر غدېدونكے. په شا راستنېدونكے. رانبغېدونكے. (۲) دوه برغده كېدونكے. قط په قط كېدونكے.

**راغبرګېده**:- (را+غ + بَ + ر + ګي + دهٔ)[پ.حمص]. وـــــ راغبرګېدنه.

**راغلے**:- (را + غ + لَے)[پ.مف.مذ.وا.ج. راغلي.مؤ: راغلې]. رارسېدلے.

**راغلے**:- (را + غ + لے)[پ.امر] رااورسېدے.

**راغلے**:- (را+غ+لَے)[پ.فع.مذ.وا.ج: راغلهٔ (مؤ.وا: راغله.ج: راغلې] رااورسېدے.

**راغليا**:- (را + غ + ل + يا)[پ(خل).اِس.]. (۱) هغه څوک چې د بهر نه راغلے وي. (۲) چې څوک نا څاپي راپېښ شي.

**راغورځول**:- (را+غو+ر+و+ ز + و + ل)[پ.مص مت] رارتاوول. راخلاصول. راپرزول. راګذارول.

**راغور ځولے**:-(را+غو+ر + د + ز + و + لے)[پ.مف.مذ.وا.ج. راغورځولي. مو: راغورځولې]. رارتاولے. راخلاص كړے. راپرزولے. راګذاركړے.

**راغورځونه**:- (را+غو+ر+د+ز+و+نَه) [پ.حمص] رارتاوونه. راخلاصونه. راپرزونه. راګذارونه.

**راغورځوونكے**:- (را + غو + ر + د + ز + وو + ن + كَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج: راغورځوونكي مؤ: راغورځوونكې]. رارتاوونكے. راخلاصوونكے. راپرزوونكے. راګذاروونكے.

**راغورځېدل**:- (را + غو + ر + د + زې + د + ل)[پ.مص لا]. رارتاوېدل. راپرزېدل. راګذارېدل. راخلاصېدل.

**راغورځېـــــدلے**:(را+غو+ر+د+زې+د+لے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راغورځېـــدلي.مؤ: راغورځېدلې]رارتاوېـــدلے.راپرزېـــدلے. راګذارشــــوے. راخـــلاص شوے.

**راغورځېدنه**:- (را + غو + ر + د + زې + د + نَه)[پ.حمص]. راغورځېدهٔ. رارتاوېدنه. راپرزېدنه. راخلاصېدنه. راګذارېدنه.

**راغورځېـدونكے**:(را+غو+ر+د+زې+دو+ن+كَے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راغورځېـدونكي.مؤ:راغورځېدونكې].رارتاوېدونكے.راپرزېدونكے.راګذارېـدونكے. راخلاصېدونكے

**راغورځېده**:-(را+غو+ر+د + زې + ده)[پ.حمص]. و ـــــ راغورځېدنه.

**راغوښتل**:- (را + غو + ش يا خ + ت + ل)[پ.مص]. رابلل. طلب كول.

**راغوښتلے** :- (را + غو + ش ياخ + ت + لَے)[پ.مف.مذ.وا.ج: راغوښتلي. مؤ: راغوښتلې]. رابللے. طلب كړے.

**راغوښتنه**:- (را + غو + ش يا خ + ت + نَه)[پ.حمص]. رابلنه. طلب كونه.

**راغوښتونكے**:-(را+غو+شياخ+تو+ن+كَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج: راغوښتونكي. مؤ: راغوښتونكې]. رابلونكے. طلب كوونكے.

**راغونځول**:-(را+ غو+ ن+ د+ ز+و+ل)[اَف: پ(قاموس). مص مت]. مچۍ وغيره راپارول. بمبرې راكټول.

**راغونځونه**:-(را + غو + ن + د + ز + و + نَه)[اَف: پ(قاموس).حمص]. بمبرې راكټونه. مچۍ وغېره راپارونه.

**راغـونځوونكے**:-(را + غــو + ن+ د + ز + وو + ن + كَـے) [اَف:پ(قـاموس). فـاع. مـذ.وا.ج: راغونځـوونكي. مـؤ: راغونځـوونكې]. بمبـرې راكټـوونكے. مچۍ وغېره راپراوونكے.

**راغونځېدل**:- (را+غو+ ن + د + زے + د + ل)[اَف:پ (قاموس). مص لا]بمبرې راكټېدل. مچۍ وغېره راپارېدنه.

**راغونځېدونكے**:-(را+غو+ن+د+زے+دو+ن+كَے)[اَف:پ(قاموس).مف. مذ .وا.ج: راغونځېدونكي.مؤ:راغونځېدونكې]. بمبرې راكټېدونكے. مچۍ وغېره راپارېدونكے.

**راغونځېدنه**:(را+غو+ن+د+زے+ن+ده)[اَف:پ(قاموس).حمص].راغونځېدنه. و ــــــ راغونځېدنه.

**راغونږ**:- (را+غو+ن + ږ)[پ.ص.مذ(مؤ.وا: راغونډه. ج: راغونډې)] راګړ. راجمع يو ځاے. راپنډ.

**راغونډول**:- (را+غو+ن+ډ+و+ل)[پ.مص مت] راګړدول. راجمع کول. راپنډول. يو ځاے کول.

**راغونډونه**:- (را + غو + ن + ډ + و + نَه)[پ.حمص] راګړدونه. راجمع کوونه. راپنډونه. يو ځاے کوونه.

**راغونډوونکے**:-(را+غو+ن+ډ+وو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:راغونډوونکي. مؤ: راغونډوونکې] راګړدونکے. راجمع کوونکے. راپنډوونکے. يو ځاے کوونکے.

**راغونډېدل**:- (را+غو+ ن + ډ+ې + د + ل)[پ.مص لا]. راګړدېدل. راجمع کېدل. راپنډېدل. يو ځاے کېدل.

**راغونډېدل**:- (را+غو+ن+ ډې + ده + ل)[پ.مص لا]. راګړدېدل. راجمع کېدل. راپنډېدل. يو ځاے کېدل.

**راغونډېدنه**:- (را+غو+ن + ډې + د + نَه)[پ.حمص].راغونډېده. راګړديېدنه. راجمع کېدنه. راپنډېدنه. يو ځاے کېدنه. راټولېدنه.

**راغونډېدونکے**:(را+غو+ن+ډې+دو+ن+کَے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راغونډېدونکي. مؤ:راغونډېدونکې].راګړدېدوکے. راجمع کېدونکے. راپنډېدونکے. يوځاے کېدونکے.

**راغونډېده**:- (را + غو + ن + ډے + ده)[پ.حمص]. و ـــــ راغونډېدنه.

**راغه**:- (را + غه )[ اَف : پ (قاموس).اِس.مؤ.وا.ج :راغې ]. رغه. دغرۀ لمن. د غرۀ غاړه.

د راغـۀ کاڼـي دي ډېـر
خوپکار دے پکښې سېر      خواجه رزق الله

**راغے**:- (را + غے)[پ.حرف]. راغلے.رالے.روغے.راورسېدو.

**رافضي**:- (را+ فِ +ضِي)[ع.اِس.مذ.وا.ج:رافضيان]. بې دينه. بدعتي.

چې په بغض د علي يا د عمر وي
رافضي دي خـارجي دي خـللي      خوشحال

**راقم**:-(را+قِ+م)[ع.اص.مذ.ج:راقمان(مؤ.وا:راقمه.ليکونکے.رقم کوونکے)]

**راقي**:- (را + قِي)[پ(ظفر).اِس.مذ] راکي. عقيق.يو قيمتي کاڼے.

**راک**:- (را+ک)[اَف:پ(قاموس).اِس.مذ] پتلون. راګ.

**راکاړل**:-(را+کا+ژياک+ل)[پ.مصمت]راکښل.پورته راوړل. پس راخيژول.

**راکړ**:- (را+ ک+ړ)[پ.کلمه.مذ(مؤ.وا: راکړه. ج:راکړې)]. راے کړو. ماته ئې حواله کړو.

**راکړه**:- (را+ک+ ړه)[پ.کلمه امر]. د راکولو (مر.ماته ئې را. راکه.

ـــــ **درکړه**:-(راکړه+دَ+ر+ک + ړه)[پ.اِس.مؤ].ورکړه راکړه. ورکول اخستل.

**راکړے**:-(را+ک+ړے)[پ.کلمه.مذ.وا.ج: راکړي.مؤ: راکړې]. حواله کړے. راکړے شوے.

**راکس**:-(را+ک+س) [اَف:پ (قاموس) اِس.مذ] دغوبل مينځنے غوئے يا غوځکے.

**راکښل**:- (را + ک + ش يا خ + ل)[پ.مص مت]. و ــــــ راکاړل.

لوبه د ژوند چې شوه راکښل او دېکل
انسان د ژونــد نــه کـربلا جوړه کړه      صادق الله اورکزے

**راکښلے**:-(را+ک+ش يا خ + لَے)[پ. مف.مذ. وا.ج: راکښلي.مؤ: راکښلې] راکاړلے. پاس راخيژولے. پورته راوړے.

**راکښنه**:- (را + ک + ش يا خ + نَه)[پ.حمص] راکاړنه. پاس راخيژونه پورته راوړنه.

**راکښونکے**:- (را + ک + شو يا خو + ن + کَے) [پفاع.مذ.وا.ج: راکښونکي. مؤ: راکښونکې] راکاړونکے. پاس راخيژوونکے. پورته راوړونکے.

**راکښوبے**:- (را+ک+ شو يا خو+ بے)[اَف:پ(قاموس).اِس.مذ.وا.ج:راکښوبي] هغه مشين چې اوبه د زمکې نه په کښې راکښلے شي. د اوبو پمپ.

**راکښے**:-(را+ک+ ښے)[پ.حرف]. په ما کښې.

چې دې نوم په غوږو واورم سره لمبه شم
هسې ســوز راکښې پېدا کړي زما ربه      حميد

**راکـول**:-(را+کـو+ل)[ اَف:پ(قاموس).اِس.مذ.وا.ج:راکولونـه]. غاښــور. منـډاو. زامبېل.

**راکول**:-(را+ک+ و+ل)[پ.مص مت]. راحواله کول. په لاس راته کېښول.

زۀ خوشحال د يوي کښـلې په طلب اوم
دا فلـک لـري بسـياري رائـے نـۀ کـړه

**راکونګ**:- (را+ک+ وَ+ن+ګ)[اَف:پ(قاموس).حمص] راکونه.

**راکونه**:- (را+ک+و+نَه)[پ.حمص] راکونه. راحواله کوونکے. په لاس راته کېښونکے.

**راکي**:- (را+ کي)[اَف:پ(قاموس).اِس.مذ]. و ــــــ راقي.

**راګ**:- (را+ګ)[اَف:پ(قاموس).اِس.مذ]. و ــــــ راک.

**راګ**:- (را+ ګ)[ه.اِس.مذ.وا.ج: راګونه]. نغمه. دسندرو وئيلو طريقه.

**راګرځول**:- (را + ګ + ر+ ځ + و + ل)[پ.مص مت] راواپس کول. راستنول. راسر کول. بيرته راوستل. بياګټل.

**راګرځولے**:(را+ګ+ر+ځ+و+لَے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راګرځولي.مؤ:راګرځولې] راواپس کړے. راستون کړے. بيرته راوستلے. راسر کړے. بيا ګټلے.

**راګرځونه**:- (را+ګ +ر+ ز+و+نَه)[پ.حمص]راواپس کوونه. راستنونه. بيرته راوستنه. راسر کوونه. بيا ګټنه.

**راګرځوونکے**:-(را+ګ+ر+ځ+وو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:را ګرځوونکي.مؤ: راګرځوونکې] راواپس کوونکے. راستوونکے. بيرته راوستونکے. راسر کوونکے. بيا ګټونکے.

**راګرځېدل**:- (را+ګ+ر+ ځې + د+ ل)[پ.مص لا] راواپس کېدل. راستنېدل. بيرته راتلل. راسر کېدل. بيا ګټلے کېدل.

**راګرځېدلے**:(را+ګ+ر+ځې+د+لے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راګرځېدلي.مؤ:راګرځېدلې] راواپس شوے. راستون شوے. بيرته راغلے. راسر شوے. بيا ګټلے شوے.

**راګرځېدنه**:-(را+ګ+ر+ زې +د+نَه)[پ.حمص]. راګرځېدۀ. راواپس کېدنه. راستنېدنه. بيرته راتلنه. راسر کېدنه. بيا ګټلے کېدنه.

**راګرځېدونکے**:(را+ګ+ر+ځې+دو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:راګرځېدونکي مؤ:راګرځېدونکې]راواپس کېدونکے. راستنېدونکے. بيرته راتلونکے. راسر کېدونکے. بيا ګټلے کېدونکے.

**راګرځېده**:- (را+ګ+ر+ ځې+ ده)[پ.حمص]. و ــــــ راګرځېدنه.

**راګني**:- (را + ګ + نِي)[ه. اِس.مؤ]. د راګ يو شاخ. راګونه په شپږو حصو کښې وېشلي شوي دي او بيا هر يو په شپږو شپږو شاخونو کښې تقسيم دي. په دې شاخونو کښې هر يو ته راګني وائي.

**راګي**:-(را+ګِي)[پ.اِس.مذ.وا.ج:راګيان]. راګ ويونکے. د راګ ماهر. سندر غاړے

**رال**:- (را + ل)[اَف:پ(قاموس).اِس.مذ] داګې. غوړ. د ها اګي) تېل.

**رالېږل**:- (را+ لې + ژ يا ګ + ل)[پ.مص مت] راستول.

**رالېږلے**:(را+لې+ژياګ+لَے)[پ.مف.مذ.وا.ج:رالېږلي.مؤ:رالېږلې]راستولے.

**رالېږنه**:- (را+ لے + ژ يا ګ + نَه)[پ.حمص] راستونه.

**رالېږونکے**:-(را+لے+ژوياگو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج.رالېږونکي.مؤ: رالېږونکې]. رااستوونکے.

**رالېږه**:- (را + لے + ژَه يا گه)[پ.کلمه امر]. راستوه.

**رام**:-(را+م)[فا.ص].روږدے.تابع.فرمانبردار.حکم منونکے.گاړه کېښنونکے.

همېشه لکه وحشي په وحشت گرځي
يـو سـاعت راسره نـهٔ ئې رام په څهٔ رحمٰن بابا

ـــ **کول**:- اص.تابع کول.فرمانبردار کول.گاړه کېښول.

ـــ **کېدل**:- اص.تابع کېدل.فرمانبردار کېدل.غاړه کېښول.

**رام**:- (را + م)[ه.اس.مذ]. (۱) خداے. (۲) ښه.غوره.

**رامائن**:-(را+ ما+ ئ + ن)[ه.اس]دهندوانو هغه کتاب چې بالميک شاعر په کښې درامچندر جی او د هغهٔ د ښځې سيتا حالات ليکلی دي. بالميک دا کتاب په سنسکرت نظم کښې ليکلے وۀ اوبيا تلسي داس په هندی کښې اوليکلو.

**رامبېل**:- (را+م+ بې+ ل)[پ.اِس.مذ] تک سپين ورکوټے گل چې ډېر خوشبويه وي.

گــل دلالـه داغ لــري سختي د رامبېل پـــانې
چا وې چې لاله دے يا رامبېل دے گلعذار ستا خوشحال

**رامداس**:- (را + م + دا + س)[ه. اس معرفه. مذ](۱) د هندوانو يو عام نوم.(۲) په پېښور ښار کښې د يو بازار نوم.

**رام رام**:- (را+م + را+م)[ه. کلمه]. (۱) د هندوانو د سلام ټکي. (۲) توبه توبه. د کرکې د ښکاره کولو کلمه.

**رام زدگے**:-(را+م+ز+د+گَے) [اَف:پ(قاموس) اِس.مذ.وا.ج.رامزدگي].مرده. هغه لرگے چې د ژرندې پل پرې گرځي.

**رامشت**:-(را+م+ش + ت)[اَف:پ(قاموس)اس.مذ] تنگ ټکور. سازوسرود.

**رامشت گر**:-(رامشت+گ+ر) [اَف:پ (قاموس)اس ص.مذ] تنگ ټکور والا. سندرغاړے.

**رامکان**:-(را+م+کا + ن)[اَف:پ(قاموس).اس.مذ]. د سرو وړين شال. گرم شال.

**راموسے**:- (را+مو+سَے) [اَف: پ (قاموس) اِس.مذ] هغه هوسی يا سرژۀ چې مشک تر ېنه حاصلېږي.

**رانا**:- (را+نا)[ه.اس.مذ.وا.ج.رانگان. (مؤ.وا.راني)] (۱) راجا. دراجپوتانې د راجاگانو خطاب. (۲) دراجپوتو د يو شاخ نوم.

**رانجه**:-(را+ن+جهٔ)[پ.اِس.ج.مذ] يو قسم تورکانړے چې ډېر زيات ميده کړے شي اوبيا سترگې پرې تورولے شي.

د ړندو سترگو حاجت د رنجو نهٔ وي
په بدرنگې ناوې څوک وائي سندرې رحمٰن بابا

ـــ **پورې کول**:- اص. رانجه لگول. سترگې تورول.

چې په تورو سترگو رانجهٔ شي پورې
لـه يــوې تورې بلا پاڅي سل نورې حميد

ـــ **پورې کېدل**:- اص. رانجهٔ لگول. سترگې تورې کول.

ـــ **لگول**:- اص. و ـــــ رانجه پورې کول.

**درنجو کانړے**:- اَص.(۱) هغه کانړے چې رانجهٔ پرې ميده کېږي. (۲) تک تور.

**رانجها**:- (را+ن+جَها)[پن.اِس معرفه. مذ] دهير عاشق. په پنجاب کښې د تخت هزاره اوسېدونکے. يوځوان چې د په هير نومې يوې جينۍ عاشق شوے وۀ. د دوي د مينې قيصه وارث شاه نومې يو شاعر په پنجابۍ نظم کښے ليکلے ده. ددې کتاب نوم هير وارث شاه دے.

ډېر هندکي په جهان گوځي د چا ياد وي
عشق عالي پايــه د هير او د رانجها کړه رحمٰن بابا

**رانځره**:-(را+ن+د+ز+رِه)[پ(اَش).اس]. زرنه. يو قسم بدبويه تورتېل شان چې په پمن څاروي پورې منبلے شي او په خوله ئې هم ورکوي.

**رانې**:- (را+ن+ ړ+ ئي) [ه.اس. مؤ.وا.ج: رانيانې] د رانا مؤنث صيغه.

**رانغاړلے**:(را+ن+غا+ړ+لَے)[پ.مف.مذ.وا.ج.رانغاړلي.مؤ.رانغاړلې](۱) راټول کړے. (۲) رانغښتلے. تاوولے. راغونډ کړے. (۳) هر څۀ په خولۀ کړے. په هر څۀ خېټه اچولے. زيات حرص کړے.

**رانغاړل**:-(را+ن+غا+ړ+ل)[پ. مصمت](۱)راټولول.(۲)رانغښتل.تاوول. راغونډول.(۳) هر څۀ په خولۀ کول په هر څۀ خېټه اچول. زيات حرص کول.

**رانغاړنه**:-(را+ ن + غا+ ړ+ نَ)[پ.حمص]. (۱) راټولونه. (۲) رانغښتنه. تاوونه. راغونډونه. (۳) هر څۀ په خوله کونه. په هر څۀ خېټه اچونه. زيات حرص کونه.

**رانغاړونکے**:-(را+ن+غا+ړو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج.رانغاړونکي.مؤ: رانغاړونکې](۱)راټولوونکے.(۲)رانغښتونکے.تاوونکے. راغونډوونکے. (۳) هر څۀ په خپله کوونکے. په هر څۀ خېټه اچوونکے. زيات حرص کوونکے.

**رانوتل**:- (را+ن+و + ت + ل)[پ.مص]. دننه راتلل. رانه کېدل. په کښې راگډېدل.

**رانوتلے**:- (را + ن + و + ت + لَے)[پ.مؤ: رانوتلې]. دننه راغلے. رانه شوے په کښې راگډ شوے.

**رانوتنه**:- (را+ن+ و + ت + نَه)[پ.حمص]. د ننه راتلنه. رانه کېدنه. په کښې راگډېدنه.

**رانوتونکے**:- (را+ن + و + تو + ن + کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج: رانوتونکي. مؤ: رانوتونکې]. دننه راتلونکے. رانه کېدونکے. پکښې راگډېدونکے.

**رانيستل**:-(را+ن + ي + س + ت + ل)[پ.مص مت]. را دننه کول. دننه باسل. راگډول. شاملول.

**تنه رانيس**:- (را+ ن + ن + ي + س + ت + نَه)[پ.حمص]رادننه کونه. د ننه باسنه. راگډونه. شاملونه.

**رانيستونکے**:- (را+ن + ن + ي + س + تو + ن + کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج: رانيستونکي. مؤ: رانيستونکې]. را دننه کوونکے. دننه باسونکے. راگډوونکے. شاملونکے.

**رانه**:- (را + نَه)[پ.حرف]. دمانه. له ماځخه. زما نه. زما څخه.

**رانيول**:- (را+ نې+ و+ ل)[پ.مص مت] (۱) رالاس ته کول. قابو کول. (۲) څۀ څيز په بيعه اخستل.

**رانيولے**:- (را+ نې+ و + لَے)[پ.مف.مذ.وا.ج: رانيولي. مؤ: رانيولې]. (۱) رالاس ته کړے. قابو کړے. (۲) څۀ څيز په بيعه اخستلے.

**رانيونگ**:- (را+ نې + وَ + ن + گ)[اَف:پ(قاموس).حمص]. رانيونه.

**رانيونه**:- (را + نې + و + نَه)[پ.حمص]. (۱) رانيونگ. رانيوۀ. رالاس ته کوونه. قابو کوونه. (۲) څۀ څيز په بيعه اخېستنه.

**رانيوونکے**:- (را + نې + وو + ن + کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج.رانيوونکي.مؤ: رانيوونکې] (۱) را لاس ته کوونکے. قابو کوونکے. (۲) څۀ څيز په بيعه اخېستونکے.

**رانيوه**:- (را + نې + وه)[پ.حمص]. و ـــــ رانيونه.

**راوتل**:- (را + و + ت + ل)[پ.مص مت]. رابهرته کېدل. بهر راتلل.

**راوتلے**:- (را + و + ت + لَے)[پ.مف.مذوا.ج: راوتلي. مؤ: راوتلې]. رابهرته شوے. بهر راغلے.

**راوتنه**:- (را + و + ت + نَه)[پ.حمص] را بهر ته کېدنه. بهر راتلنه.

**راوتونکے**:-را +و + تو + ن + کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج: راوتونکي.مؤ: راوتونکې] را بهر کېدونکے. بهر راتلونکے.

**راوړکے**:-(را+و+ړ+کَے)[اَف:پ(قاموس).اِس.مذ.] دالانچه.ورکوټے ډبوړے.

**راوړاندے**:- (را + و + ړا + ن + د ے)[پ.ص]. رامخکښې.

**ـــ کول**:- اِص.(۱) رامخکښې کول. مخې ته راوتل. (۲) مقابلې ته راويستل.

**ـــ کېدل**:- اِص ،(۱) رامخکښې کېدل. مخې ته راتلل. (۲) مقابلې ته وړاندې راتلل. کېد ل

**راوړل**:- (را+و+ړ+ل)[پ.مص مت]. (۱) رارسول. (۲) پيدا كول. زېږول (۳) بيان كول. روايت كول.

زۀ رحمٰـن دعـا سـلام پـه هغـو وايـم
هـر چـې مـالره راوړي سـلام د سـتا

**راوړلے**:-(را+و+ړ+لَے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راوړلي.مؤ:راوړلې]. (۱) رارسولے. (۲) پيدا كړے. زېږولے.

**راوړنګ**:- (را + و + ړَ + ن + ګ)[اَف:پ(قاموس).حمص]. راوړنه.

**راوړنه**:-(را+و+ړ+نَه)[پ.حمص]. (۱) راوړنګ. راوړۀ. رارسونه. (۲) پيدا كونه. زېږونه.

**راوړونکے**:-(را+و+ړو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:راوړونکي.مؤ: اوړونکې].
(۱) رارسوونکے. (۲) پيدا كوونکے. زېږوونکے.

**راوړه**:- (را + و + ړه)[پ.حمص]. و ـــــ راوړنه.

**راوستل**:- (را+و+س+ت+ل)[پ.مص مت] رابوول. د ساه څۀ څيز يو ځاے ته رارسول.

چا پـه ذور راله دا غم نۀ دے راوړے
زۀ خپل زړۀ ته ئې پخپله راوستل کړم خوشحال

**راوستلے**:- (را+و+ س+ ت + لَے)[پ.مف.مذ.وا.ج: راوستلي. مؤ: راوستلې]. رابولے. دساه څۀ څيز يو ځاے ته رارسولے.

**راوستنګ**:- (را + و + س + ت + ن + ګ) [اَف:پ(قاموس) حمص] راوستنه.

**راوستنه**:- (را + و + س + ت + نَه)[پ.حمص] راوستنګ. راوستۀ. رابوونه. د سا څۀ څيز يو ځاے ته رارسونه.

**راوستونکے**:- (را + و+س+ تو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج: راوستو نکي.مؤ: راوستونکې]. رابوونکے. دساه څۀ څيز يو ځاے ته رارسونکے.

**راوسته**:- (را+ و+س+ ته)[پ.حمص] و ـــــ راوستنه.

**راوستے**:-(را+و+س+تَے)[پ.مف.مذ.وا.ج: راوستي. مؤ: راوستې]. رابوولے. دساه څۀ څيز يو ځاے ته رارسولے.

**راون**:- (را+و+ن)[ه.اِس معرفه. مذ] د لنكا د يو پخواني راجا نوم چې د رامچندرجي ښځه سيتا ئې تښتولې وه.

**راوه**:- (را + دَه)[اَف: پ(قاموس).اِس.مؤ]. ملهم. پهه.

**راوي**:- (را+وي)[ع.اِس.مذ.وا.ج: راويان] روايت كوونکے. بيان كوونکے. قصه بيانوونکے.

**راوي**:- (را وي)[اِس معرفه]. د پنجاب يو مشهور سيند.

**راه**:- (را+ ه)[فا.اِس.مؤ]. لار. ګودر.

**راهب**:- (را+ه+ ب)[ع.اِس.مذ.وا.ج: راهبان.(مؤ.وا: راهبه. ج: راهبې)] هغه عيسائي زاهد چې دنيائې پرېښودلې وي اؤ په ګوټ كښې ناست وي.

**راه داري**:-(را+ه+دا+ري)[فا.اِس.مؤ.وا.ج:راه داريانې]. (۱) اجازت نامه. (۲) دلارې يا د سړک يا د پل محصول.

**ـــ اخېستل**:- اِص.(۱) محصول اخېستل. (۲) اجازت اخېستل.

**ـــ وركول**:- اِص (۱) محصول وركول. (۲) د اجازت كا غذ وركول. اجازت نامه وركول.

**د ـــ پروانه**:- اِص. داجازت كاغذ. اجازت نامه.

**راهزن**:-(را+ه+ز+ن)[فا.اِس.مذ.وا.ج.راهزنان]شوكمار.لوټمار.ډاكو. لار وهونکے. دلارې غل.

**راه زني**:- (را + ه + ز + ني)[فا.اِس.مؤ] شوكماري.

**راهسكول**:- (را + هَ + س + ک + و + ل)[پ.مص مت] راوچتول. راپارول. مقابلې ته راتيارول.

**راهسكونه**:- (را+ ه +س+ک+و+نَه)[پ.حمص]. راوچتونه. راپارونه. مقابلې ته راتيارونه.

**راهسكوونکے**:(را+ه+س+ک+وو+ن+َے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:راهسكوونكي. مؤ: راهسكوونكې]. راوچتوونکے. راپاروونکے. مقابلې ته راتياروونکے.

**راهسكېدل** :. (را + ه + س + کې + د + ل)[پ.مص لا] راوچتېدل. راپارېدل. مقابلې ته راتيارېدل.

**راهسكېدنه**:.(را + ه + س + کې + د + نَه)[پ.حمص] راهسكېده. راوچتېدنه. راپارېدنه. مقابلې ته راتيارېدنه.

**راهسكېدونکے**:(را+ه+س+کے+دو+ن+کَے)[پ.مف.مذ.وا.ج:راهسكېدونكي. مؤ: راهسكېدونكې] راوچتېدونکے. راپارېدونکے. مقابلې ته راتيارېدونکے.

**راهسكېده**:- (را + ه + س + کې + ده)[پ.حمص]. و ـــــ راهسكېدنه.

**راهسي**:-(را+ه + سې ) [ پ .حرف ] راپه هورته. راپه ديخوا. راسې. پورې. ترې نه.

ځان هر ګوره ناګاره راځرګند ېږي
له هغې ورځې راهسې چې آګاه يم رحمٰن بابا

**راهن**:- (را+ه+ن)[ع.اِس.فاع. مذ.وا. ج: راهنان]. ګانه كوونکے. ګانه چي.

**راه نما**:- (را+ ه+ن+ما)[فا.اِس ص. مذ. وا. ج: راهنمايان] لارښودونکے. رهبر.

**راه نماي**:- (را + ه + ن + ما + ئي)[فا.اِس.مؤ]. لارښودنه.

**راهي**:- (را + هي)[اِس ص.مذ] (۱) راهروے. لاروے. مسافر. (۲) لاړ.

ستا په مخ پسې مې درست وجود راهي شو
لـــه صـــورتـــه دې وتـــلے زما روح رحمٰن بابا

**راهيټ**:-(را+ هي+ ټ)[اَف:پ(قاموس).اِس.مذ.وا.ج: راهيټان] دكلي مشر. ملک.

**راهيسته**:- (را + هي + س + ته)[پ.ص]. رادېخوا. دې پلو. نزدې.

**ـــ كول**:- اِص.رادېخوا كول. دې پلو كول. نزدې كول.

**ـــ كېدل**:- اِص.رادېخوا كېدل. دې پلو كېدل. نزدې كېدل.

**رائے**:- (را + ئے)[ع.اِس.مؤ] مشوره. تجويز. صلاح.

**ـــ اخېستل**:- اِص.مشوره اخېستل. صلاح اخېستل.

**ـــ وركول**:- اِص. مشوره وركول. صلاح وركول. تجويز پېش كول.

**په ـــ تلل**:- اِص. دچا په مرضۍ كار كول.

**رائے**:- (را + ئے) [ه. اِس.مذ]. راؤ. دراجا زوے. دعزت خطاب.

**ـــ بهادر**:- (را ئے + بَ + ها + دَ + ر) [ه.اِس ص. مذ]. د حكومت له خوا دهندوانو دپاره د عزت خطاب. ددې په مقابله كښې مسلمانانو ته خان بهادر خطاب وركولے شي.

**رائته**:- (را+ ئے+ تَه)[ه، رائتا. اِس. مؤ]. سپين كدو. په كدو كښې نرے نرے كړي. په اوبو كښې ئې وخوټوي اوپه ماستو كښې ګډ كړے شي. لړه مالګه اؤ مرچ پرې واچولے شي او بيا ئې خوري.

**رائټر**:-(را + ئي + ټَ + ر)[انګ.اِس ص. مذ. وا.ج: رائټران.(مؤ.وا: رائټره. ج: رائټرې)]. ليكوال. ليكونکے. مصنف. مؤلف.

**رائج**:-(را+ ئے+ ج)[ع.ص.مذ.(مؤ.وا: رائجه. ج: رائجې)]. چې رواج ئې موندلے وي. ددستور مطابق.

ـــــ **کول:**- اص. رواج ورکول. جاري کول. دستور ورکول.

ـــــ **کېدل:**- اص.رواج موندل. جاري کېدل. دستور ورکولے کېدل.

ـــــ **زني:**- رائے + ز + ني)[فا.اس.مؤ]. رائے ورکول. مشوره ورکول. د څهٔ خبرې په باره کښې خپل خيال ظاهرول.

**رائفل:**- (را + ئے + فَ + ل)[اَنګ.اس.مذ.وا.ج: رائفلونه] ګولېدار ټوپک.

**رائګان:**- ( را + ئے + ګا + ن ) [فا.ص.مذ(مؤ.وا: رائګانه ج:رائګانې)] ضائع. برباد. عبث

يو زره مې په طاعت کښې تېره نهٔ کړه

ګران بها عمــر مې لاړ رائګان دربغه رحمٰن بابا

ـــــ **تلل:**- اص.عبث تلل. بربادېدل.بې ځايه تلل. رائګان کېدل.

ـــــ **کېدل:**- اص.وـــــ رائګان تلل.

**رايادول:**-(را+يا+د+ و + ل)[اِپ.مص مت] يادول. په ياد کښې راوستل. په ذهن کښې راوتل.

چې خورې زلفې رايادې کړم د ترکو

جمع زړهٔ هغه ســاعت خـــورلــه ما رحمٰن بابا

**رايادونه:**-(را+ يا + د + و + نَه)[اِپ.حمص]. يادونه. په ياد کښې راوستنه. په ذهن کښې راوستنه.

**رايادوونکے**:-(را+يا+د+وو+ن+کَے)[اِپ.فاع.مذ.وا.ج:رايادوونکي.مؤ: رايادوونکې] په ياد کښې راوستونکے. په ذهن کښې راوستونکے. يادوونکے.

**رايادېدل:**- (را+يا+دې+د+ل)[اِپ.مص لا] يادېدل. په ياد کښې راتلل. په ذهن کښې راتلل.

**رايادېدنه:**-(را+ يا + دې + د + نَه)[اِپ.حمص] يا دېدنه. په ياد کښې راتلنه په ذهن کښې راتلنه.

**رايادېدونکے**:(را+يا+دې+دو+ن+کَے)[اِپ.مف.مذ.وا.ج:رايادېدونکي.مؤ:رايادېدونکې] يادېدونکے. په ياد کښې راتلونکے. په ذهن کښې راتلونکے.

**رايستل:**-(را+ي+س+ت+ل)[اِپ.مص مت] راويستل. رابهر کول. رابنکاره کول. راميدان ته کول.

**ميدان ته ـــــ:**- اص. په ډاګه کول.

**رايستلے:**-(را+ي+س+ت+لَے)[اِپ.مف.مذ.وا.ج:رايستلي.مؤ:رايستلې] راويستلے. رابهر کړے. رابنکاره کړے.

**رايستنه:**- (را + ي + س + ت + نَه)[اِپ.حمص]. رايستهٔ. راويستنه. رابهر ته کوونه. رابنکاره کوونه. په ډاګه کوونه.

**رايستونکے:**-(را+ ي + س + تو + ن + کَے)[اِپ.فاع.مذ. وا. ج: رايستونکي. مؤ: رايستونکې]. راويستونکے. رابهر کوونکے. رابنکاره کوونکے. راميدان ته کوونکے.

**رايسته:**- (را+ ي + س + ته)[اِپ.حمص]. وـــــ رايستنه.

**رايسته:**- (را + ي + س + تَه)[اِپ.ص]. را هيسته. رادېخوا. رانژدې.

**رايل:**- (را + ي+ س + تَه) [اَنګ.ص] شاهي. بادشاهي. شاهانه.

**رايېدل:**- (را+يې+ د + ل) [اَف:پ (قاموس).مص] د خر هنېندل. د خر نرېدل. د خر خرتېدل. دَخر اواز راويستل.

**رب:**-(رَ+ ب)[ع.اس.مذ.وا] (۱) پالونکے.ساتونکے.(۲)خدا ے پاک. الله تعالیٰ.

ګـــوره هسې کــردګار دے رب زمـا

چې صاحب د کل اختيار دے رب زما رحمٰن بابا

ـــــ **العالمين:**-(ر+ب+ب+ل+عا+ل+مي+ن)[ع.اس.ص.مذ.وا]. دعالمونو رب د ټول جهان ساتونکے او پالونکے.

**رباب:**- (ر+با + ب)[ع.اس. مذ. وا. ج: ربابونه]. رباپ. دسازيوه اله چې اکثر د پښتنو په سيمه کښے غږولے شي.

په هغو غوږ وچې ذکر د خدا ے اورې

بيا سماع په هغو غوږو د رباب کړې رحمٰن بابا

ـــــ **په لاس کول:**- اص.رباب رااخستل. رباب غږول.

ما هالهٔ له پارسائ نهٔ لاس وللې

چې په لاس کړهٔ مطربانو ربابونه رحمٰن بابا

ـــــ **ترنګول:**- اص.رباب ټنول. رباب ټنګول. رباب ږغول. رباب وهل.

ـــــ **ترنګېدل**:-اص.رباب ټنېدل. رباب ټنغېدل. رباب ږغېدل. رباب وهلے کېدل.

ـــــ **ټنول:**- اص. و ـــــ رباب ترنګول.

ـــــ **ټنېدل:**- اص. و ـــــ رباب ترنګېدل.

زړګے مې شته دے خو پکښې هغه ګذار نشته دے

رباب تنېرې خــو پــه کښې هغه زوږ ساز نشته دے صادق الله اورکزے

ـــــ **ټنګول:**- اص.و ـــــ رباب ترنګول.

ـــــ **تنګېدل:**- اص.و ـــــ رباب ترنګېدل.

ـــــ **ږغول:**- اص.و ـــــ رباب ترنګول.

ـــــ **سورول:**- اص. رباب په سر کښې راوستل. درباب زير و بم سمول. رباب د ږغولو دپاره تيارول.

ـــــ**وهل:**- اص. و ـــــ رباب ترنګول.

ـــــ **وهلے کېدل:**- اص. و ـــــ رباب ترنګېدل.

**د ـــــ غوږ تاو کول:**- اص.د رباب تارونه راکښل.

هر مطرب چې غوږ ئې تاؤ کا د رباب

پـه دا تاؤ کښې زما زړهٔ کاندې کباب رحمٰن بابا

**ربابي:**-(ر+با+بي)[اِپ.اس.مذ.وا.ج:ربابيان] رباپي. رباب ږغوونکے. مطرب.

زمانه د ربابي د لاس رباب دے

هر زمـــان نــوې نغمې د بم وزير خوشحال

**رباپ:**- (رَ + با + پ)[اِپ.اس.مذ.وا.ج: رباپونه]. و ـــــ رباب.

**رباپي:**- (رَ + با + پي)[اِپ.اس.مذ.وا.ج: رباپيان]. و ـــــ ربابي.

**رباط:**- (رِ + با + ط) [ع.اس.مذ]. سرا ے. مسافر خانه.

د قسمت په نيلي سور وم ګرځېدلم

آخر کُوز کړم عاشقۍ ئې پرې رباط رحمت داوي

**رباط:**- (رَ + با + ط) [ع.اس معرفه]. په افريقه کښې دامراکش د ملک يؤ ښار چې صدر مقام ئې هم دے.

**رباعي:**- (ر+با+ عي)[ع.اس.مؤ.وا.ج: رباعيانې] د څلور و مصرعو يو نظم چې د رومبيو دوهٔ او اخري مصرعې قافيه ئې يوه وي. رباعي يو مخصوص اهنګ او وزن لري. څلوريزه.

**ربړ:**-(ر+ب+ړ)[اِپ.اس. مذ]خواري کوښښ. ستوماني. مشق. محنت منډې ترړې.

**ربړ:**- (ر+ب+ ړ)[اَنګ. اس.مذ.وا.ج:ربړونه]. ديوې ونې پے. چې ټهوس ټکړه ترې جوړه شي نو دهغې نه ټائرونه ټيوبونه او داسې نور ډېر د کار څيز و نه جوړولے شي.

ـــــ **کول:**- اص. دکاغذ نه څهٔ ليک په ربړ ورانول.

ـــــ **کېدل:**- اص. دکاغذ نه څهٔ ليک په ربړ وراَنول.

**ربړا:**- (ر+ب+ړا) [اس.مؤ]. ربړه. (۱) تکليف. خواري. (۲) جنګ. جګړه. معامله.

ـــــ **اچول:**- اص.جنګ جګړه جوړول. معامله جوړول.

ـــــ **پېښېدل:**- اص.په ربړا اَوړېدل. په جنګ جګړه اَوښتل. په څهٔ معامله

کنبې ګېرېدل.

**په ــــ اوړېدل:-** اص. ربړا پېښېدل.

**ربړوکے:-**(ر+ب+ړ+و+کے)[اَف:پ(قاموس).اس.مذ.وا.ج:ربړوکي.مؤ: ربړوکۍ] تښتېدلے. ویرېدلے. ترهېدلے. زغلېدلے.

**ربړول:-** (ر+ب+ړ+و+ل)[اپ.مص مت] تکلیف ورکول. مصیبت کښې ګېرول. تنګول. کړول.

**ربړولے:-** (ر+ب+ړ+و+لَے)[اپ.مف.مذ.وا.ج: ربړولي. مؤ: ربړولې] تکلیف ورکړے. مصیبت کښې اخته کړے. تنګ کړے. کړولے.

**ربړونګ:-** (رَ + ب + ړ + وَ + ن + ګ)[اَف: پ(قاموس).حمص]. ربړونه.

**ربړونه:-** (رَ + ب + ړ + و + نَه)[اپ.حمص]. ربړونګ. تکلیف ورکونه. مصیبت کښې ګېرونه. تنګونه. کړونه.

**ربړوونکے:-** (رَ + ب + ړ + وو + ن + کَے)[اپ.فاع.مذ.وا.ج: ربړوونکي. مؤ: ربړوونکې]. تکلیف ورکوونکے. مصیبت کښې ګېروونکے. تنګوونکے. کړوونکے.

**ربړه:** (رَ + ب + ړه)[اپ.اس.مؤ] و ــــ ربړا.

**ربړي:-** (ر+ب+ړي)[اپ.ص] (۱) ربړیالے. ربړیز. ربړین. د ربړ نه جوړ. (۲) ربړه پیدا کوونکے. ازاري. تکلیف جوړوونکے. لانجه مار.

**ربړي:-** (ر+ ب + ړي)[ه. اس .مؤ]. یو قسم خواږهٔ چې د څیو نه جوړولے شي.

**ربړیالے:-** (ر+ب+ړ+ یا+ لَے)[اَف:پ(قاموس).اس ص. مذ. وا.ج: ربړیالي. مؤ: ربړیالۍ] و ــــ ربړي.

**ربړېدل:-**(ر+ ب+ړے+ د+ ل)[اپ.مص لا] تکلیف کښې ګېرېدل. کړېدل. په مصیبت اخته کېدل.

**ربړېدلے:-**(رَ+ ب + ړے + د + لَے)[اپ.مف.مذ.وا.ج: ربړېدلي. مؤ: ربړېدلې] کړېدلے. په مصیبت اخته شوے. تکلیف کښې ګېر شوے.

**ربړېدنګ:-** (رَ + ب + ړے + دَ + ن + ګ)[اَف:پ(قاموس).حمص]. ربړېدنه.

**ربړېدنه:-** (ر+ب+ړے+ د + نَه)[اپ.حمص]. ربړېدنګ. ربړېدهٔ. تکلیف کښې ګېرېدنه. کړېدنه. په مصیبت اخته کېدنه.

**ربړېدونکے:-**(رَب + ړ ے + دو + ن + کَے)[اپ.مف.مذ.وا.ج: ربړېدونکي. مؤ: ربړېدونکې]. تکلیف کښې ګېرېدونکے. کړېدونکے. په مصیبت اخته کېدونکے.

**ربړېده:-** (ر+ ب + ړ ې + ده)[اپ.حمص] و ــــ ربړېدنه.

**ربړیز:-** (ر+ ب + ړي + ز)[اپ.اس ص. مذ (مؤ. وا: ربړیزه. ج: ربړیزې)]و ــ ربړي.

**ربزګے:-**(ر+ب+ر+ګے) [اَف:پ(قاموس) اس.مذ.وا.ج:ربزګي] یو قسم مرغۍ.

**ربط:-** (ر + ب + ط)[ع.اس.مذ] تړون تعلق. نسبت.

**ــــ پیدا کېدل:-** اص.تړون پیدا کېدل. تعلق پیدا کېدل.

**ــــ لرل:-** اص. تعلق لرل. تړون لرل. نسبت لرل.

**ربغړ:-** (ر+ ب + غ + ړ)[اَف:پ(قاموس).اس.مذ]. د غریب تېر اولاد.

**ربغړے:-** (ر+ب+غ +ړے)[اپ.اس.مذ.وا.ج:ربغړي] (۱)لبغړے. لغړ. بربنډ خوار. غریب. (۲) په بیړه. په تادۍ.

**ربل:-**(ر+ ب+ ل)[اپ.مص مت]. ربېل. کټ کول. لوکول.

**ربل:-**(+ب+ ل)[اَف:پ(قاموس).اس.مذ.وا.(مؤ.وا: ربله.ج:ربلې)] خوښ. قبول.

**ربل:-** (ر+ب+ل) [اَف:پ(قاموس).اس.مذ]. ښهٔ سلوک. رواداري.

**رابلول:-** (ر+ب+ل+و+ ل)[اَف:پ(قاموس).مص مت] (۱) قبلول. خوښول. (۲) رواداري کول. ښهٔ سلوک کول.

**ربلولے:-**(ر+ب+ل+و+لَے)[اَف: پ(قاموس). مف. مذ. وا. ج: ربلولي. مؤ: ربلولې] (۱) قبول کړے. خوښ کړے. (۲) ښهٔ سلوک کړے.

**ربلونګ:-**(رَب+ل + وَ + ن + ګ) [اَف: پ (قاموس).حمص] ربلونه. ربلول.

**ربلونه:-** (ر+ب+ل + و + نَه)[اَف: پ(قاموس). حمص] (۱) قبلونه. خوښونه (۲) رواداري کونه. ښهٔ سلوک کونه.

**ربلونے:-**(رَ+ب+لو+نے)[اَف:پ (قاموس) اس.مذ.وا.ج: ربلوني. مؤ ربلونۍ] هغه ورغومے چې مورئې مړه وي.

**ربلوونکے:-**(رَ+ب+لَ+دو+ن+کَے)[اَف:پ(قاموس).فاع.مذ.وا.ج:ربلوونکي. مؤ: ربلوونکې] (۱) قبلوونکے. خوښوونکے. (۲) ښهٔ سلوک کوونکے. رواداري کوونکے.

**ربلېدل:-**(رَ+ب+لي+د+ل)[اَف:پ (قاموس).مص لا].(۱) قبلېدل. خوښېدل. (۲) ښهٔ سلوک کېدل. رواداري کېدل.

**ربلېدلے:-**(ر+ب+لي+د+لَے)[اَف:پ(قاموس).مف.مذ.وا.ج:ربلېدلي.مؤ: ربلېدلې]. (۱) قبول کړے. خوښ کړے. (۲) ښهٔ سلوک کړے.

**ربلېدنګ:-** (رَ+ ب + لي + دَ + ن + ګ)[اَف: پ (قاموس).حمص].ربلېدنه.

**ربلېدنه:-** (ر+ ب+لي+د+ نَه)[اَف:پ(قاموس).حمص] (۱) ربلېدنګ. قبلېدنه خوښېدنه. (۲) ښهٔ سلوک کېدنه. رواداري کېدنه.

**ربلېدونکے:-**(ر+ب+لي+دو+ن+کَے)[اَف:پ(قاموس).مف.مذ.وا.ج: ربلېدونکي. مؤ: ربلېدونکې]. (۱) قبلېدونکے. خوښېدونکے. (۲) ښهٔ سلوک کېدونکے.

**ربنوکے:-**(ر+ب+ن+ړ+و+ کَے)[اَف:پ (قاموس). اس.مذ.وا.ج: ربنوکي. مؤ: ربنوکۍ]. کمزورے. خوار.

**ربنه:-**(رَ + بَ + ن + رَه)[اپ.اس.مؤ. وا.ج: ربنې]. ربنۍ. (۱) دوریځې نه پس تته شان رڼا. (۲) د نمر رومبۍ څریکه. (۳) دبادنرۍ وړمه.

ما چې ستا په جمال سترګې کړې رڼې
کښـــلي واړه ستـــا د مخ دي د بـــنې خوشحال

**ربنۍ:-** (رَ + بَ + ړ + ئي)[اَف:پ (قاموس).اس.مؤ]. و ــــ ربنه.

**رښېدل:-** (رَب + ې + د + ل)[اَف: پ(قاموس). مص لا] . ترهېدل. ویرېدل. له ویرې تښتېدل.

**رښېدلے:-**(ر+ب+ې+د+لَے)[اَف:پ(قاموس).مف.مذ.وا.ج:رښېدلي. مؤ: رښېدلې] ترهېدلے. ویرېدلے. له ویرې تښتېدلے.

**رښېدنه:-**(رَ+ ب + ې + د + نه) [اَف:پ (قاموس).حمص] ترهېدنه. ویرېدنه. له ویرې تښتېدنه.

**رښېدونکے:**(ر+ب+ې+دو+ن+کَے)[اَف:پ(قاموس).مف.مذ.وا.ج:رښېدونکي. مؤ:رښېدونکې] ترهېدونکے. ویرېدونکے. له ویرې تښتېدونکے.

**ربیع:-** (رَ + بي + ع)[ع.اس.مذ]. د سپرلي موسم.

**ــــ الاول:-** (ر+بي+ع+ل +اَو+ وَ+ ل)[ع.اس معرفه]. داسلامي کال دریمه میاشت باره وفات. اوله خور.

**ــــ الثاني:-**(ر+ي+ع+ث+ثا+ني)[ع.اس معرفه] داسلامي کال څلورمه میاشت . دویمه خور.

**رپ:-** (ر+ پ)[اپ.اس.مذ] (۱) لړ ساعت (۲) حرکت (۳) هغه موره چې لوښي پرې اېښوے شي.

**ــــ وهل:-** اص.حرکت کول. خوځېدل. رقېدل.

**په ــــ کښې:-** اص. په لړ ساعت کښې. په نه څهٔ کښې. ډېر زر.

**دسترګو په ــــ کښې:-** اص. د سترګو په ځنبل کښې. په رپ کښې. په لړ ساعت کښې. په اٰن فن کښې.

**رپا:-**(ر+پا)[اپ.اس.مؤ] رپړے. رپندے. رچ. لرزه. دګېدنه. ربردېدنه. رپېدنه. رګدېدنه.

**رپاره:-**(ر + پا + ره)[اَف:پ(قاموس) اس. مؤ.وا.ج: رپارې] دکېږې توټه.

**رپړے:-** (ر+ پ + ر + ړے) [اپ.اس. سوا] و ــــ رپا.

**رپړے راتلل:-** اص.رګدېدل. رپېدل. دیځنۍ یا دویرې له کبله په بدن کښې رچ

راتلل.

**ریپك**:- (ر+پ+ك)[اَف:پ(قاموس) اس.مذ.وا.ج: ریکي] پاس چت سره برابره جوړه وړه براندګی. چجه.

**ریپل**:- (ر + پ+ ل) [پ.اس.مذ.وا.ج:ریپلونه] رائفل. ګولي دار ټوپک.

**ریند**:(ر+پ+ن+د)[پ.اس.ص.مذ(مؤ.وا:رینده.ج:ریندې)].ریندے.

ریبدونکے۔رګبدونکے.

**ریندے**:- (ر + پ + ن + د ے)[پ.اَس.مذ.مؤ:ریندی] و ــــ ریند.

**ریپے**:-(ر+پ+ن+ ړے)[اَف:پ(قاموس).ص.مذ.مؤ: ریپی]. ډک. پُر. ترسره پوره.

**ریپو**:-(ر+ پو)[پ.اس.مذ]. رفو. بېزل. شلېدلي جامه دهغې په تارونو برابرول.

ـــ **کول**:- اِص.رفو کول. بېزل. شلېدلے جامه د هغې په تارونو برابرول.

ـــ **کېدل**:- بېزلېدل. شلېدلے جامه دهغې په تارونو برابرېدل.

**ریپورټ**:-(ر+پو+ ټ)[پ.انګ: ریپورټ. اَس. مذ.وا.ج: ریپورټونه] د څۀ جرم یا واقعې اطلاع یا خبر.

ـــ **کول**:- اِص.دڅۀ جرم یا واقعې خبر ورکول.

ـــ **کېدل**:- اِص.دڅۀ واقعې یا جرم اطلاع کېدل.

**ریپوټچي**:- (ریپورټ+چي)[پ.اِس ص .مذ. وا.ج: ریپوټچیان]. (۱) ریپوټي. ریپوټ کوونکے. (۲) جاسوس. مخبر.

**ریپوټي**:- (ر+ پو + ټي)[پ.اِس ص.مذ.وا.ج: ریپوټیان]. و ــــ ریپوټچي.

**ریپوګر**:-(ر+پو+ګ+ر)[پ.اِس ص. مذ.(مؤ.وا: ریپوګره. ج: ریپوګران)]. رفوګر. درفوکار کوونکے. بېزونکے.

**ریپول**:-(ر+پ+و + ل)[پ.مص مت]. (۱) څنبل. (۲) خوځول. شورول. (۳) پرقول. (۴) ربړدول. ډېرزیات ویرول.

**ریپولے**:(ر+پ+و+لَے)[پ.مف.مذ.وا.ج:ریپولي.مؤ:ریپولې].(۱)خوځولے.شورولے (۲) څنبلے. (۳) پرقولے. (۴) ربړدولے. ډېرزیات ویرولے.

**ریپونګ**:- (ر + پ + وَ + ن + ګ)[اَف:پ(قاموس).حمص] ریپونه.

**ریپونه**:-(ر+پ+و+نَه)[پ.حمص] (۱) ریپونګ. خوځونه. شورونه. (۲) څنبنه. (۳) پرقونه. (۴) ربړدونه. ډېرزیات ویرو نه.

**ریپوونکے**:-(ز+پ+وو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:ریپوونکي.مؤ:ریپوونکې](۱) څنبونکے.(۲) خوځوونکے. شوروونکے. (۳) پرقوونکے. (۴) ربړدوونکے. ډېرزیات ویروونکے.

**ریپے**:- (ر +پَے)[پ.اِس.مذ]. (۱) حرکت. خوځېدنه. (۲) بیرغ. جنډه.

**ریپېدل**:-(ر+پے+د+ل)[پ.مص لا].(۱)خوځېدل.شورېدل.(۲) ربړدېدل. بوړنېدل. (۳) پرقېدل. څلقېدل.

ستا په شونډو د انګار له تصوره

زۀ په نیمو شپو بېدار شمه ریپېږم پرېشان خټک

تک سپین مخ ئې الواني د ناموس رنګ کړو

د نـــــامــــــوس اوږې پـــــه غــــاړه ریپــېده صدیق الله

اورکزے

**ریپېدلے**:-(ر+پے+د+لَے)[پ.مف.مذوا.ج:ریپېدلي.مؤ:ریپېدلې].(۱)خوځېدلے. شورېدلے. (۲) ربړدېدلے. بوړنېدلے. (۳) پرقېدلے څلېدلے.

**ریپېدنګ**:- (ر + پے + دَ + ن + ګ) [اَف:پ(قاموس). حمص] ریپېدنه.

**ریپېدنه**:-(ر+پے+د+نَه) [پ.حمص] (۱) ریپېدنګ. ریپېدۀ. خوځېدنه. شورېدنه. (۲) ربړدېدنه. بوړنېدنه. (۳) پرقېدنه. څلقېدنه.

**ریپېدونکے**:-(ر+پے+دو+ن+کَے) [پ.مف.مذ.وا.ج:ریپېدونکي. مؤ: ریپېدونکې] (۱) خوځېدونکے. شورېدونکے. (۲) ربړدېدونکے. بوړنېدونکے. (۳) پرقېدونکے. څلقېدونکے.

**ریپېده**:- ر + پے + ده)[پ.حمص]. و ــــ ریپېدنه.

**ریپېده**:- (ر+پي+دَه)[اَف:پ(قاموس).اِس.مؤ] هغه بالښتګو ته یا ګدۍ چې په تنور ډوډۍ پرې لګولے شي.

**رت**:- (ر+ ت)[پ.حرف] دسابقې په طور د صفت سره لګولے شي چې د زیات معنې ورکوي.

**رتبه**:- (ر + ت + بَه) [ع.اِس.مؤ.وا.ج:رتبې]. مرتبه. درجه ترقي.

هـــر ســړے چې رتبه نۀ لري د علم

سړے نۀ دے خالي نقش دے ګویا رحمٰن بابا

ـــ **اوچتول**:- اِص.درجه اوچتول. ترقي ورکول.

ـــ **اوچتېدل**:- اِص.درجه اوچتېدل. ترقي کېدل.

ـــ **کمول**:- اِص.درجه کمول. درجه ټیټول.

ـــ **موندل**:- اِص ،ترقي موندل. درجه اوچتېدل.

**رته**:- (ر + تَه)[پ.حرف]. راته. راله.

ـــ **کلاچي**:-(رَ+ ت + تَه + ک + لا+ چي)[اس معرفه]. د ډېره اسماعیل خان ښار سره نژدې یو ځاے چې په کښې د زراعت د محکمې د څېړنې فارم دے.

**رتي**:- (ر + ت + تي)[ه.اس.مؤ]. رتی۔ دماسې اتمه برخه وزن. ډېرلږ مقدار. خاشه. بځرے.

د خروار دعوٰی ئې او ګنه ممکنه

که رتئ یا جودانه به ئې وي درته رحمٰن بابا

**رتے پتے**:- (ر+تے+ پَ+تے)[پ.کلمه] ذرې ذرې. شلېدلے. څیرې ویرې. ګارې ګارې.

ـــ **کول**:- اِص.ذرې ذرې کول. څیرې ویرې کول. شلول ګارے ګارے کول.

څوک به ستا د مخ نقـــاب کا رتې پتې

څوک به ستا په اننګیو کښېږدي ګوتې خوشحال

ـــ **کېدل**:- اِص.ذرې ذرې کېدل. څیرے ویرے کېدل. ګارے ګارے کېدل. شلېدل.

**رَټ**:- (رَ + ټ)[پ.ص]. (۱) داوښکو په یو مخه بهېدل. (۲) سکوټ.

ـــ **جواب ورکول**:- اِص. صفا او سکوټ جواب ورکول. سخت جواب ورکول.

ـــ **کېدل**:- اِص.انکاري کېدل.

**رټ**:- (رَ + ټ)[پ.اِس.مذ]. د غټودانو یا د تنکو پوره نۀ راوتل.

ـــ **کېدل**:- اِص. غټې دانې یا تنکې پوره نه راوتلې کېدل.

**رِټ**:-(ر+ ټ)[اَنګ.اس.مذ.وا.ج: رټونه]. اپیل. عریضې یا درخواست چې لوے عدالت ته کولے شي.

ـــ **کول**:- اِص.لوے عدالت ته د څۀ فیصلې خلاف اپیل کول. رټ داخلول.

ـــ**کېدل**:- اِص.لوے عدالت ته د څۀ فیصلې خلاف اپیل کېدل. رټ داخلېدل.

ـــ **داخلول**:- اِص.و ــــ رټ کول.

ـــ **داخلېدل**:- اِص۔ و ــــ رټ کېدل.

**رټ رټ**:- (ر + ټ + ر + ټ)[پ.ص.مذ] په یو مخ ژړا.

ـــ **ژړل**:- اِص.په یؤ مخ ژړل. پرله پسې ژړل.

**رټل**:- (ر+ ټ + ل)[پ.مص مت]. ترټل. شړل. بد رد وئیل. سپکول. بې عزته کول.

اے زما مینې ستا پښتو نه ځار ش

د مینې دک د ستا رټـــل مې اولید صادق الله ارکزے

**رټلے**:-(رَ+ ټ + لَے)[پ.مف.مذ.وا.ج: رټلي. مؤ: رټلې] ترټلې. شړلې. سپک کړے. بد رد وئیلے بې عزته کړے.

**رټ مټ**: - (ز+ ټ + م + ټ)[پ.ص]. رډ بډ. څرګند. ښکاره. غړولې سترګې.

**رټن**:-(رَ+ټ+ن)[اَف:پ (قاموس).اِس.مذ.(مؤ.وا.رټنه.ج.رټنې)]داغي.داغدار. لګېدلې.

**رټنه**: (رَ + ټ + نَه)[پ.حمص]. ترټنه. سپکونه. بې عزته کوونه. شړنه.

**رټول**:- (ر + ټ + و + ل)[اَف:پ(قاموس).مص مت] رډول.

**رټونکے**:- (ر+ ټو+ن+ کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج: رټونکي. مؤ: رټونکې]. ترټونکے. شړونکے. بې عزته کوونکے. سپکوونکے.

**رټه**:- (رَ + ټه)[اَف:پ(قاموس).اس. مؤ]. داغ.

—— **لګول**:- اص.داغ لګول. داغي کول.

—— **لګېدل**:- اِص.داغ لګېدل. داغي کېدل.

**رټه**:- (ر + ټَه)[پ.ص] (۱) صفا. څرګنده. ښکاره (۲) بده. سپکه.

—— **خبره**:- اص. (۱) صفا خبره. ښکاره خبره (۲) بده خبره سپکه خبره.

**رټی**:- (ر +ټ+ ئي)[اَف:پ(قاموس).اِس.مؤ] یو قسم وابښهٔ چې وبخ ئې میلو یا یړ خوري.

**رټېدل**:- (ر + ټې + د + ل)[اَف:پ(قاموس).مص لا] رډېدل.

**رجا**:- (رَ + جا)[ع.اِس.مؤ]. امید. طمع. اسره.

**رجال**:- (رِ + جا + ل)[ع.اِس.ج.وا.رجل] سړي. نارینه.

دا خــــبره بـــده نـــهٔ ده چـا وئیلې
په تحقیق چې شعر حبض دے د رجال — خوشحال

**رجب**:- (ر+ج+ب)[ع.اِس معرفه] د حجري کال اوومه میاشت. زبرګه میاشت د زکوٰة میاشت.

ځلورې خورې دال چې سره ید شي
د رجب دے ب ویخ د شعبان دک — خوشحال

**رجحان**:-(ر+ ج+ها+ن)[ع.اِس.مذ] یو خواته ټیټېدل. مائل کېده. توجه. مخه.

**رجرومه**:-(رَ+ج+رو+ مه)[پ.اِس.مؤ.وا.ج: رجرومې] رنجرومې.رنجرومه. سر مینکه. درنجو کڅوړه.

**رجز**:-(ر+ ج + ز)[ع.اِس.مذ] شعر لوستل. د جنګ په میدان کښې داسې شعرونه وئیل چې په دښمن ویره راشي.

**رجز وئیل**:- اص. د جنګ په میدان کښې د فخر او ویاړ پېدا کولو دپاره شعرونه وئیل.

**رجسټر**:-(ر+ج+س+ ټ+ر)[اَنګ. اِس.مذ.وا.ج.رجسټرونه]. د دفتري کار د یاداشت ساتلو کتاب.

**رجسټرار**:-(ر+ج+س+ټ+را+ر)[انګ.اس ص. مـذ.وا.ج. رجسـټراران] (۱) د رجسـټرۍ کـوونکے عهدېدار. (۲) پـه یونیورسـټۍ کښـې د تعلیم پـه محکمه کښې دامداد باهمي په محکمه کښې او پـه لوے عدالت کښې دیو عهدیدار عهده.

**رجسټرډ**:- (ر+ج+س+ټ+ر+ډ)[انګ.ص] رجسټري شوے. په کتاب خېژولے شوے. داسې چټۍ یا پارسل چې په ډاکخانه کښې ئې رجسټري شوې وي.

**رجسټري**:- (ر+ج+س+ټ+ري)[انګ.اِس.مؤ.وا.ج. رجسټریانې] (۱) په ډاکخانه کښې په زیاتو پیسو ادا کولو درج کړې شوې چټۍ یا پارسل (۲) د مال او جائیداد د خر څولو او اخستلو کاغذ ونو درج کولو ته رجسټري وائي.

—— **کول**:- اص (۱) په ډاکخانه کښې په زیاتو پیسو ادا کولو چیټۍ. یا پارسل استول. (۲) د مال او جائیداد د خر څولو یا اخستلو کاغذونه په عدالت کښې درج کول.

—— **کېدل**:-اص. (۱) په زیاتو پیسو ادا کولو په ډاکخانه کښې چیټۍ. یا پارسل استولے کېدل. (۲) د مال او جائیداد د خرڅولو یا اخستلو کاغذونه په عدالت کښې درج کېدل.(۲) د مال او جائیداد د خرڅولو یا اخستلو کاغذونه په عدالت کښې درج کېدل.

**رجسټریشن**:(ر+ج+س+ټ+رے+ش+ن)[اَنګ.اِس.مذ] درجسټرۍ کولو عمل.

—— **کول**:- اص.رجسټري کول.

—— **کېدل**:- اص.رجسټري کېدل.

**رجعت**:- (ر+ج +ع+ ت)[ع.اِس.مذ] ستنېدل. اوړېدل. ګرځېدل.

**رجعت پسند**:- (ر+ج+ع+ت+پ+س+ ن + د)[فاتر. اس ص. مذ]. هغه څوک چې زاړهٔ دودونه دستورونه خوښوي.

**رجم**:- (ر+ج+م)[ع.اِس.مذ]. کاڼي ویشتل. سنګساري. د زنا ثابتولو په جرم کښې اسلامي سزا.

—— **کول**:- اص. په کاڼو ویشتل. سنګسارول.

—— **کېدل**:- اص. په کاڼو ویشتلے کېدل. سنګسارېدل.

**رجمنټ**:-(ر+ج+م+ن+ټ)[اَنګ. اس. مذ. وا. ج: رجمنټونه] رجمټ. رجمټه. پلټنه.

**راجواړه**:- (ر+ج+وا+رَه)[ه. اس. مؤ. وا. ج: راجوړې]. و ـــــ راجواړه.

**رجوع**:-(ر+جو+ع)[ع.اِس.مذ] ګرځېدل. واپس کېدل. مائل کېدل. ټیټېدل. میلان څرګندېدل.

د هر څیز رجو خپل اصل وته کېږي
ځکه درمي و بد ذات وته بد ذاتے — عبدالقادرختک

—— **کول**:-اص.ګرځېدل.واپس کېدل.مائل کېدل.ټیټېدل.میلان څرګندول. عرض کول.

—— **کېدل**:- اص.ګرځېدل. واپس کېدل. مائل کېدل. ټیټېدل. میلان څرګندېدل. عرض کېدل.

**رجه**:- (ر+ جه) [اَف: پ (قاموس) اِس. مؤ] (۱) رسۍ. پړے.(۲) قانون.

**رځړ**:-(ر+د+ز+ړ) [پ.اس معرفه] د چارسدې په تحصیل کښې داشنغر یو کلے.

**رځه**:- (ر+د+ زه)[اَف:پ (قاموس). اس. مؤ] رګه. رګۍ. لاړ.

**رچ**:-(ر+چ) [پ. اس.مذ] (۱) د کور سامان. کډه. (۲) د جولاګانو دکړۍ اله. (۳) د کبانو نیولو جال چې داوسپنې مرۍ په کښې وي. (۴) عیب. وټ. نقصان.

**رُچ**:- (ر+چ)[پ.اِس.مذ] (۱) خوراک دپاره مینه، تلوسه یا حرص (۲) هغه نموئ چې په تلو کښې خپلې پښې خوږ کړي.

ډېر عیوب دي بې حسابه زما په تن کښې
بـارې نـهٔ وینم پـه خپل نسب کښې رچ — حافظ عظیم

—— **وهل**:- اص. د تلو په وخت کښې ښنګرې وهل. بروهل.

**رچانړی**:-(رَ+چا+ن+ړ+ی) [پ (ګن) اس.مؤ] دنائي کسپت.دنائي ګوډے.

**رچکانړے**:-(رَ+چ+کا+ن+ړے)[اَف:پ(قاموس).اِس.مذ.وا.ج: رچ کاڼي]هغه کاڼے چې چارې چاقوان پرې تېرولے شي.

**رچکے**:-(ر+ چ + کَے)[اَف:پ(قاموس).اِس. مذ.وا.ج: رچکي] دڅرخه کړۍ تار غونډه.

**رچنی**:-(ر+چ+ن + ړے) [اَف:پ (قاموس)اس. مذ.مؤ: رچنې] خراد خراط.

**رچه**:- (ر + چه)[پ روز] اس.مؤ.وا.ج.رچې] ریچه. ډېره ورکو ټې سپړه.

**رخ**:- (ر+ت+س)[ اَف: پ (قاموس) ص. مذ. مؤ: رخه] (۱) کوږېښے کږے. هغه سړے چې یوه پښه ئې لږه شان کږه وي. (۲) رخے. ګځ متے. هغه څوک چې په کېڼ لاس کار کوي.

**رخے**:- (ر+ت+سَے)[پ (ب،خ) اس ص . مذ]. و ــــــ رخ.

**رخیکنبل**:- (ر+ت+ سي+ګ+ ش یا خ + ل) [اَف:پ (قاموس) مص مت] راکنبل څکول. په زمکه راکنبل.

**رخیکنبلے**:-(ر+ت+سي+ک+ش یاخ+لے) [اَف: پ (قاموس) مف. مذ.وا. ج:

رښيکښلي. مؤ:رښيکښلې] راکښلې. ښکولې. په زمکه راکښلې.

**رښيکښنګ**:-(ر+ت+سي+ک+ش+ياخ+ن+ګ)[اَف:پ(قاموس).حمص]
رښيکښنه. راکښنه. ښکونه. په زمکه راکښنه.

**رښيکښنه**:- (رَ + ت + سي + ک + ش يا خ + نَه)[اَف:پ(قاموس).حمص].
رښيکښنګ راکښنه. ښکونه. په زمکه راکښنه.

**رښيکښونکے**:(رَ+ت+سي+ک+شو ياخو+نکَے)[اَف:پ(قاموس).فاع.مذ.وا.ج:
رښيکښونکي. مؤ:رښيکښونکې]راکښونکے.ښکوونکے. په زمکه راکښونکے. ښځې

**رحل**:- (ر+ح+ ل)[ع.اس.مذ.وا.ج: رحلونه] د لرګي جوړشوے شے چې لوستو په وخت قران شريف يا سيپاره په کښې کېږدي چې شکل ئې د پرانستي کتاب په شان وي. رچل.

**رحلت**:- (ر+ ح + لَ + ت)[ع.اس.مو] روانېدنه. کوچ.

چې کـالي ئـې پـاتې نـۀ شـي مـرده شـوې تـه
خدايـه ورکـړې و خوشـحال هسـې رحلـت

ـــــ **کول**:- اص، کوچ کول. سفر کول. د دنيا نه تلل. مړکېدل.

ـــــ **کېدل**:- اِص. کوچ کېدل سفر کېدل. د دنيا نه تلل. مړکېدل.

**رحم**:- (ر+ ح + م) [ع. اس.مذ] مهرباني. همدردي. شفقت. ترس.

قديمه خدايه مهربـانه زۀ بخښنه غواړم
د رحم سوال کوم رحمٰنه زۀ بخښنه غواړم — پريشان خټک

**رحم خوړل**:- اص. رحم راتلل. ترس راتلل. زړۀ سوځېدل.

ـــــ **راتلل**:- اص. و ـــــ رحم خوړل.

ـــــ **کول**:- اِص. مهرباني کول. همدردي کول. شفقت کول. ترس کول.

نفس شېطان سرے و کفر ته اوباسي
رحـم فـهـم په ځان اوکړه کافر مه شه — رحمٰن بابا

ـــــ **کېدل**:- اص. مهرباني کېدل. همدردي کېدل. شفقت کېدل. ترس کېدل.

**رحم**:- (ر+ح+م)[ع.اِس.مذ] (۱) ګېډنۍ. ګيډنۍ. د زناناو هغه اندام چې په کښې ماشوم جوړيږي او نهه مياشتې په کښې وده کوي. (۲) کورنۍ. ټبر. خاندان.

**رحمان**:-(ر+ح+ما+ن)[ع.اس ص.مذ] (۱) رحم کوونکے. د الله پاک صفتي نوم. (۲) د عبدالرحمان بابا مختصر نوم.

اے چې رحمٰـن و رحيـم دې نـوم دے
عظيم بادشاه ئې کار دې معلوم نۀ دے — خوشحال

د رحمت د شـــاعـــرۍ قـــدر بـــه ډېر ؤ
که رحمٰن موند ژوندے وے په باکرام کښې — رحمت داوي

**رحماني**:- (ر + ح + ما + ني)[ع.ص] د رحمان. د رحم کوونکي.

**رحمـــت**:-(ر+ح+م+ت)[ع.اِس.مذ.وا.ج:رحمتونــه]. (۱)رحم.مهربـــاني. بخښنه.معافي. (۲) رحمت داوي يو شاعر. رحمت بند کرم تورو ستر ګو په کشمير کښې. (۳) باران. وور.

چې زمـا پـــه باب ځۀ کښلي دي رارسي
که رحمت دے که زحمت دے ، وار په وار — رحمٰن بابا

**کول**:- اص. مهرباني کول. رحم کول. فضل کول. بخښنه کول.

**کېدل**:- اِص. مهرباني کېدل. رحم کېدل. فضل کېدل. بخښنه کېدل.

**رحمت وربدل**:- اَص. (۱) د الله تعالىٰ فضل او کرم کېدل. (۲) باران وربدل.

**رحمت الله**:-(ر+ح+م+ت+ل+لا+ ه)[ع.اِس ص.مذ] (۱) د الله پاک رحمت. (۲) د مسلمانانو سړو يو نوم.

**رحمت للعالمين**:- (ر+ح +م +ت+ن +لِ+ل+عا+لَ+ مِي+ ن)[ع.اِس ص.مذ] (۱) د عالمونو د پاره رحمت. (۲) حضرت محمد مصطفى صلى الله عليه وآله وسلم ته د خدا ے پاک ورکړے خطاب. مهربان. رحيم.

**رحم دل**:- (ر+ح+م+دِ+لي) [فا.اس.مؤ] دلسوزي. خواخوږي. همدردي. زړۀ سواندي.

**رحمکار**:- (ر+ح+م+کا+ر) [پ. اس. ص.مذ] دحضرت کا کا صاحب رحمت الله عليه مفتي نوم.

د خوشـــحال تکيـــه پـــه خـــدا ے ده
بيـــا پـــه تـــا ده شـــېخ رحمکـــاره

**رحمېدل**:- (رَ+ ح + مے + د + ل)[پ.مص مت] رحم کول. مهرباني کول.

قهر مه کړه په عشاقو ستم پرېږده
پـــه احـــوال د مبتـــلاؤ ورحمېږه — رحمت داوي

**رحمېدنه**:- (ر+ ح + مے + د + نَه) [پ.حمص] رحم کوونه. مهرباني کوونه.

**رحمېدونکے**:-(ر+ح+مے+دو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج:رحمېدونکي. مؤ: رحمېدونکې] رحم کوونکے. مهرباني کوونکے.

**رحېل**:- (ر+ حے+ ل) [پ.اس.مذ.وا.ج: رحېلونه] و ـــــ رحل.

**رحيم**:- (رَ+حِي+ م) [ع. اِس ص.مذ] ډېر مهربان. رحم کوونکے. د الله تعالي يوصفتي نوم.

ستا لـــه رحمه بـــه زۀ ولې نومېدي کړم
چې دې ځان دے د رحيم په نام نومړے — رحمٰن بابا

**رخ**:-(ر+خ) [پ.اس.مذ.وا.ج: رخونه] دټوپک يا تماچې په نالۍ يا شپېلۍ کښې دننه هغه کرېږ ورېږ کرښې چې ددوي په برکت ګولۍ يا چرې ترې لرې پورې ځي.

**رُخ**:- (ر+ خ)[فا.اس.مذ] (۱) اړخ.طرف ډډه. مخه. (۲) توجه. ميلان

بيالـــه کومـــه رخـــه اور پـــه حميـــد بـــل شـــو
چـــې د خلـــې ئـــې د اهونلـــوګي کېـــږي

ـــــ **اخستل**:- اص. مخه نيول. يوې ډډې ته تلل.

ـــــ **بدلول**:- اص. اړخ بدلول. ډډه بد لول.

ـــــ **ته کتل**:- اِص. د ځۀ خبرې په بابله د چا ميلان معلومول.

ـــــ **کتل**:- اص.جاج اخستل. ځان خبرول.

ـــــ **کول**:- اِص. مخه کول. توجه کول.

ـــــ **کېدل**:- اِص. مخه کېدل. توجه کېدل.

ـــــ **ګرځول**:- اص. مخ ګرځول. مخ اړول. توجه بل پلو کول.

ـــــ **ګرځېدل**:- اص. مخ ګرځېدل. توجه بل پلو کېدل.

**د هوا ـــــ ته کتل**:- اص. د موقعې نه فائده اوچتول.

**رخپته**:-(ر+خ+پ+ته) [اَف:پ (قاموس)اس.مؤ.وا.ج:رخپتې](۱) خرپته. يو قسم غرئيز بوټے چې د ګلاب د بوټي هومره لوے وي او د نس خوږې په بيمارۍ کښې د دارو په طور استعمالېږي. (۲) يوه غوئيزه سبزي چې کچه خوړلے شي.

**رخپين**:-(رَ+خ + پِي + ن)[اَف:پ(قاموس) اس.مذ] کورتوبه. دشوملو لاوڼ.

**رخت**:- (رَ + خ + ت)[اَف:پ(قاموس).اس.مذ]. هَل. يوې. د قلبې اله.

**رخت**:- (ر+ خ + ت)[فا.اِس.مذ.وا.ج: رختونه] (۱) ټوکے. کپړه. جامه. (۲) پخه شوې خرمن.

زمـــانې پـــه هر بازار اوګرځولم
خبردار ئې کړم د هر بازار له رخته — خوشحال

**رخچينه**:-(ر+خ+چي+نه) [اَف:پ(قاموس)اس. مؤ.وا.ج: رخچينې. (۱) هغه کپړه چې داس دپاسه د خولې اوچولو د پاره اچولې شي (۲) طلا داره ډکه ټوپۍ يا پټۍ.

**رخ دار**:- (رَ + خ + دا + ر)[پ.اِس ص. مذ]. رخيز. رخي. رخونه لرونکے.

**رخړل**:- (+خ +ړ+ ل) [اَف:پ (قاموس).مص] په دستوکېدل. په دستونو تلل. ريخې وهل.

**رخسار**:- (ر+ خ + سا + ر)[فا.اس.مذ.وا] اننګے. ننګے.

ګل له شرمه خولې پرېږدي

پـــه نظر کا ستا رُخسار ته خوشحال

**رخښت**:-(ر+خ+ش يا خ+ت) [اَف:پ (قاموس)اس مذ (مؤ.وا: رخښته.ج: رخښتې)] هغه بره چې ريخې پريغېدلے وی. يعنی بهېږي.

**رخصت**:-(ر+خ+صَ+ت)[ع.اس.مذ.وا.ج.رخصتونه] چُټي.اجازت. جداکېدنه.

ـــــ **اخستل**:- اص.چټی اخستل. اجازت اخستل. روانېدل.

رخصت مه اخله په غلا راځخه درومه

کلـــه څـــوک د ځان وژلو کار پسند عبدالقادر ختک

ـــــ **غوښتل**:- اص. چټی غوښتل. اجازت غوښتل.

ـــــ **کول**:- اص.پرېښول. اجازت ورکول. رخصتول. چټی کول. رخصت ورکول.

ـــــ **کېدل**:- اص.اجازت ورکېدل. چټی کېدل. رخصتېدل. رخصت موندل.

ـــــ **موندل**:- اص. و ـــــ رخصت کېدل.

ـــــ **ورکول**:- اص. و ـــــ رخصت کول.

**په ـــــ تلل**:- اص.په چټی تلل.

ـــــ **اتفاقي**:- (رخصت + ا + ت + ت + فا + قِي)[ع.اس.مؤ]. اتفاقي چټی. و نا څاپي ضرورت د پېښېدو چټی.

**رخصتول**:- (ر+خ + ص+ت+و+ل)[پ.مص مت] (۱) رخصت ورکول. په مخه ښه وئيل. (۲) فارغول.

**رخصتونه**:- (ر+خ+ ص+ت+و+نه)[پ.حمص](۱) رخصت ورکونه. په مخه ښه وئينه. (۲) فارغونه.

**رخصتوونکے**:(ر+خ+ص+ت+وو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج.رخصتوونکي.مؤ: رخصتوونکې](۱) رخصت ورکوونکے. په مخه ښويونکے. (۲) فارغوونکے.

**رخصتي**:- (ر+خ+ص+تِي)[اس.مؤ] (۱) هغه څوک چې په چټی وي. (۲) د وادهٔ په وخت د جينئ د مور پلار د کورنه د خاوند کورته تلل. (۳) سلامي. هغه روپۍ چې د تلو په وخت ناوې ته ورکولے شي.

**رخصتېدل**:- (ر+خ+ص+ تے+د+ل) [پ.مص لا] (۱) رخصت کېدل. روانېدل. (۲) فارغېدل.

**رخصتېدنه**:-(ر+خ+ص+تے+د+نَه)[پ.حمص] (۱) رخصت کېدنه.رخصتېدهٔ. روانېدنه. (۲) فارغېدنه.

**رخصتېدونکے**:(ر+خ+ص+تے+دو+ن+کَے)[پ.مف.مذ.وا.ج.رخصتېدونکي مؤ: خصتېدونکې] (۱) رخصت کېدونکے. روانېدونکے. (۲) فارغېدونکے.

**رخصتېده**:- (ر+خ + ص+ تے + دَه)[پ.حمص] و ـــــ رخصتېدنه.

**رخن**:-(ر+خ+ن)[اَف:پ(قاموس) اس. مذ(مؤ.وا: رخنه.ج: رخنې)]. کينه ناک. حاسد. بغضي.

**رخنه**:- (ر+ خ + نَه)[فا.اس.مؤ.وا.ج: رخنې] خلل. نقصان. عېب.

ـــــ **اچول**:- اص. خلل اچول. عېب پيدا کول.

ـــــ **رايستل**:- اص. عېب رايستل. خلل رايستل. نقصان رايستل.

ـــــ **راتلل**:- اص.خلل راتلل. عېب پيدا کېدل. نقصان پيدا کېدل.

ـــــ **راوتل**:- اص. خلل راوتل. نقصان راوتل. عېب ښکاره کېدل.

ـــــ **انداز**:- (رَخنه+ا+ ن + دا + ز)[فااس ص. مذ. وا.ج: رخنه اندازان. (مؤ.وا: رخنه اندازه. ج: رخنه اندازې)] خللي. خلل اچوونکے. فسادي.رخنه ګر.

ـــــ **اندازي**:- (رَ + خ + نَه + اَ + ن + دا + زِي)[فا.اس.مؤ]. فساد. خلل اچونه. عېب پيدا کونه.

ـــــ **ګر**:- (رَخنه + ګَ + ر)[پ.اس.ص. مذ] و ـــــ رخنه انداز.

رخنه ګر د ملک پرې نهٔ ږدي په خپل ملک کښې

پـــــه حـــکمت پـــــه زرو زور پـــر لښکرونه خوشحال

**رخه**:- (ر + خه)[پ.اس.مؤ.وا.ج: رخې]. کينه. بغض. حسد.ـ تورنيتي.

که يو ځل شي مخامخ د يار له مخه

نور بـــه نـهٔ کا رقيبان درباندې رخه حميد

ـــــ **کول**:- اص.حسد کول. کينه کول. بغض کول.

له هر چا سره سينه کړه خپله صافه

مه لـــه چاسره حسن کوه مه رخه معزالله خان مومند

**رخي**:- (ر + خي)[پ.اس.مذ.مؤ: رخې] کينه ناک. حاسد. بغضي. تورنيتي.

**رخے**:-(ر+خَے)[پ(صوابی). اس. مذ.وا.ج: رخي]. په دېوال کښې ورکړے شوے دکانړي تېروسکے يا تمبر ګے.

ـــــ **ورکول**:- اص.په دېوال کښې د کانړي پروسکے يا تمبر ګے ورکول.

ـــــ **ورکېدل**:- اص.په دېوال کښې د کانړي تروسکے يا تمبرګے ورکېدل.

**رخے**:- (رَ + خَے)[اَف:پ(قاموس). اس.مذ]. د تالاو د اوبو موری يا سوره.

**رخيز**:- (ر+ خي + ز)[پ.اَس ص. مذ] و ـــــ رخ دار.

**رخيل**:- (ر+ خ + ي + ل)[پ.مص]. خريل. کلول. وېښته پاکول.

**رخينه**:- (ر+خ +ي+ نَه)[پ.حمص] خرينه.ـ کلونه. وېښته پاکونه.

**رخيونکے**:(ر+خ+يو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.وا.ج.رخيونکي].خريونکے.کلوونکے. وېښتهٔ پاکوونکے.

**رد**:- (رَ+ د)[اَف:پ(قاموس).اس.مذ]. طرف. ډډه. خوا. غاړه. اړخ . پلو. پردارد نهٔ راتېرېدل:- (اَف)اص. په دې لور نه راتلل. دېخوا تشريف نه راوړل. په دې پلو قدم نه راخېستل.

**پر دارونه ورتلل**:- (اَف) اص. په هغه خو قدم نه ورتېرول.

**رد**:- (ر + د)[پ.اس]. باطل. ناخوش.

رد دي که مقبول دي که معقول که نا معقول دي

ګـــــوره نتـــداره کـــړه تـر دا دم مه وهه زيات خوشحال

ـــــ **کول**:- اص.ناخوښول. نهٔ منل. پرېښودل. باطل کول.

په يوه جواب مې رد کا يـو سوال

هسي کاندي د سوالونو جوابونه رحمٰن بابا

ـــــ **کېدل**:- اص.نا خوښېدل. نه منلے کېدل. باطل کېدل.

مبتلا د ښکلي مخ په خال اوخديم

که د صدق سل سند ښئيم زهٔ درېم حميد

**ردڅ**:- (ر+د+ت+س)[اَف:پ(قاموس).اس. مذ] چيکو. ګڅ لاسے. ګڅے. ګڅ متے.

**ردوبد**:- (ر+د+و+بَ+د) [پ. کلمه. مذ] بدرد. بده وينا. پوچې خبرې.سپکرېغېدل.

**وئيل**:- اص.بد ردوئيل. پوچه وينا کول. سپک رېغېدل.

**ردول**:-(ر+د+ و + ل)[پ.مص مت]. رد کول. واپس کول. نهٔ منل. باطل کول.

**ردونه**:-(ر+د+و+نه)[پ.حمص]. رد کونه. واپس کونه. نهٔ مننه. باطل کوونه.

**ردوونکے**:-(ر+د+وو+ن+کَے) [پ.فاع. مذ.وا.ج: ردوونکي. مؤ: ردوونکې] رد کوونکے.واپس کوونکے.نهٔ منونکے. باطل کوونکے.

**رده**:- (رَ + دَه)[پ.اس.مؤ.وا.ج: ردې]. قطـ. د خښتو قطار. بوره. وار.

ـــــ **اېښودل**:- اص. قط اېښول. وارکېښول. بوره اېښودل.

**ردي**:-(ر+دي) [پ.اس] (۱) خراب. ناکاره. ناقص. ناپکار. بېکاره(۲)نامنظور ناخوښ.

ـــــ **کول**:- اص. (۱) خرابول. ناکاره کول. بېکاره کول. (۲) نامنظورول. نهٔ خوښول.

**ـــــ کېدل:**- اص (۱) خوابېدل. ناکاره کېدل. بېکاره کېدل (۲) نامنظورېدل. نۀ خوښېدل.

**د ـــــ په بيعه خرڅول:**- اص په ارزانه بيعه خرڅول. ډېر په ــــ لړه بيعه خرڅول.

**د ـــــ ټوکرۍ ته غورځول:**- اص. يوکار نه کول. څۀ درخواست نا منظورول. څۀ څيز ته توجه نه کول. بې قيمته ګڼل.

**ردېدل:**- (ر+د ي +د+ ل) [پ.مص لا] ردکېدل. واپس کېدل. نۀ منلے کېدل. باطل کېدل.

**ردېدنه:**-(ر+دي +د+نَه)[پ.حمص]ردېدۀ.ردکېدنه. واپس کېدنه. نۀ منلے کېدنه. باطل کېدنه.

**ردېدونکے:**-(ر+دي+دو+ن+کَے) [پ.مف.مذ.واج.ردېدونکي .مؤ: ردېدونکې] .ردکېدونکے. واپس کېدونکے. نۀ منلے کېدونکے. باطل کېدونکے.

**ردېده:**- (ر+ دي + ده) [پ.حمص] و ـــــ ردېدنه.

**رديف:**-(ر+دِي+ ف) [ع.اس.مذ](۱) هغه تورے يا حرف چې د غزل قصيدې يا نظم و قافيې نه پس بيا راځي. (۲) د حروف تهجي ترتيب.

**ـــــ وار:**- (رديف+وا+ ر)[فا.اس ص. مذ] د حروف تهجي په مناسبت يا د ترتيب مطابق

**رډ:**- (رَ+ ډ)[پ.ص] (۱) نېغ. برند. ضدي. (۲) کلک سترګے. (۳) څرګند. ښکاره.

**ـــــ کتل:**- اص. و ـــــ رډ رډ کتل.

**ـــــ کېدل:**- اص.رنډېدل. ضد کول.

**سترګې رډول:**- اص. بې حيا کېدل. کلک سترګے کېدل. خبره نۀ منل.

**رډېد:**- (ر+ د + ب + ډ )[پ.ص]. څرګند. صفا. په ډانګ پېيلے.

**ـــــ پښېمانه کېدل:**- اص. په ډاګه منکرېدل. د خبرې نه بېخي اَوړېدل.

**ـــــ ويل:**- اص.ښکاره ويل. په ډاګه ويل.

**په رډوبډو:**- اص. په غړولو سترګو. صفا. ښکاره. رډ په رډه.

**رډ په رډه:**- (ر+ د+ په + ر+ ډه)[پ.ص] ښکاره. څرګند. په ډاګه.

**رډ سترګے:**- (ر+ډ+س+ت+ر+ ګَے)[پ.اص ص.مذ.واج: رډ سترګي. مؤ: رډسترګې]. کلک سترګے. بې شرم. بې حيا. سپين سترګے.

**رډے:**- (ر+ ډَے)[پ.اص ص.مذ.مؤ: رډۍ]. هغه څوک چې سترګې ئې بهر راوتې وي. بق سترګے.

**رډي:**- (رَ-ډي)[اَف.پ(قاموس).ص.مذ]. راوتې سترګې. بقې سترګې.

**رډېدل:**-(ر+ډ ي+د+ل) [پ.مص لا] ضد کول.رنډېدل.خيرې کېدل. کلکېدل.

**سترګې رډېدل:**- اص.سترګې بقې راوتل.

**رذالت:**- (ر+ذا+ لَ+ ت)[ع.اس.مذ]. رذاله توب. سپکوالے. کم ذاتي. بد ذاتي. رذيل توب.

**رذاله:**- (رِ+ ذا + لَه)[ع.] سپک. کمينه خوشے. کم ذات. رذيل بدذات.

رذاله که دولتمند شي څۀ لوئے نۀ شو

ګنهـه خس وۀ بربوکې يو وړ په پورته علي خان

**رذاله توب:**- (رذاله+ تو + ب)[پ.اس.مذ]و ـــــ رذالت.

**رذيل:**- (+ ذِي + ل)[ع.ص.مذ(مؤ.وا: رذيله. ج: رذيلان)]. و ـــــ رذاله.

**ـــــ توب:**- (ر+ ذي +ل+ تو+ ب)[پ.اس.مذ] و ـــــ رذالت.

**رزاق:**- (ر+ز+ا+ق)[ع.اس ص. مذ]. روزي رسان. رزق ورکوونکے. د الله پاک صفتي نوم.

**رزق:**- (رَ+ ز + ق)[ع.اس.مذ]. روزي. خوراک.

مدام اوښکې تويوې د رزق له غمه

دُر ګوهر تـر بها پلورې ارزان ولې رحمٰن بابا

**ـــــ اورسکورکېدل:**- اص. (۱) خوراک زهر ګندېر کېدل. په رزق کښې خلل اچېدل. په رزق نۀ پوهېدل. (۲) د خوراک په وخت ناڅاپې د چا راپېښېدل.

**ـــــ پسې کېدل:**- اص. تش د رزق فکر کول. د روزۍ لټون کول. په روزۍ پسې سر وهلے بروهلے ګرځېدل.

**ـــــ په لته وهل:**- اص.خپل روان روزګار پرېښول. خپل ځان ته پخپله تاوان رسوول.

**ـــــ ختمېدل:**- اص.(۱) مړکېدل. نېټه پوره کېدل. د ژوند پانه رژېدل.(۲) د يو ځاے نه بل ځاے ته بدلېدل.

**ـــــ خوړل:**- اص.خوراک کول. ډوډۍ خوړل.

**ـــــ رسول:**- اص. روزي رَسول.

څوک شي رزق هـر مخلوق ته رسولے

دے د هر يو مخلوق روزي رسان دے رحمٰن بابا

**ـــــ زياتېدل:**- اص .ګټه زياتېدل. زياتې پيسې لاس ته راتلل. د ښې ورځې خاوند کېدل.

**ـــــ غوښتل:**- اص.روزي غوښتل. د روزۍ سوال کول.

**ـــــ کمېدل:**- اص. په بده ورځ اخته کېدل. غريب کېدل. روزګارد لاسه وتل. د رزق د ګټيلو ذريعې کمېدل. بې برکتي راتلل.

**ـــــ ګټل:**- اص.روزي ګټل. کار روزګار کول.

**ـــــ ورکول:**- اص.روزي ورکول.

هسې رزق دې خداے هيچا لره ور نۀ کړۀ

چې د چا رزق په هسې رنګ سېلاب وي رحمٰن بابا

**په ـــــ پسې تلل:**- اص.په روزۍ پسې سفر کول. د رزق په تلاش کښې بل پلو تلل.

**په ـــــ نۀ پوهېدل:**- اص. و ـــــ رزق اورسکور کېدل.

**خپل ـــــ ته نه پرېښول:**-اص.څوک ارام ته نه پرېښول. په چا خپله روزي نه پېرزوکېدل. پردے رزق بدي کېدل.

**د چاپه ـــــ کښې خاورې اچول:**- اص. د چا دلاسه کنډک اختسل. د چا روزګار ختمول.

**رزم:**- (رَ+ زَ + م)[ع.اس. مذ]. جنګ. جګړه.

**رزمته:**- (رَ+ ز + مَ + ته) [اَف.پ (قاموس) اَس.مؤ] روزي. لقمه.

**رزميه:**- (ر+ ز + مِي + يَه)[فا.اِس.مؤ] د رزم په باره کښې چې په کښې د جنګ بيان وي.

**رزيډنټ:**-(ر+ري +ډ+ن+ټ)[انګ.اس.مذ](۱)باشنده .اوسېدونکے .استوګن (۲)مقامي. ځائي. (۳) شاهي نمائنده چې د رياستونو د نګرانۍ د پاره مقرروي.

**رزيډنسي:**- (رِ+ زِي+ډ + ن + سِي) [اَنګ.اس.مؤ] د رزيډنټ داوسېدو ځاے.

**رژند:**- (ر+ ژ + ن + د) [پ.ص.مذ. (مؤ.وا: رژنده.ج: رژندې)] رژېدونکے څيز. دوړېدونکے شے.

**ـــــ کېدل:**- اص.رژېدل. دوړېدل. رژېدوته تيارېدل. په رژېدو راتلل.

**رژول:**- (ر+ژ+و+ل)[پ.مص مت].(۱) په ګوتو دانې بيلول. دوړول. (۲) وهل. ګذار کول.

آفـرين دې پـه وئيلـو شـه خوشـحاله

چـې د تـورې رژول کـړې پـه قلـم کښـې

**ارمان ـــــ:**- اص.ارمان ويستل. يو کار ښۀ په درز دروز کول. ارمان نۀ پاتې کېدل.

**ټکي ـــــ:**- اص. دروغ وئيل. د ځانه خبرې جوړول.

**رژولے:**- (ر+ژ+و+لَے) [پ.مف.مذ.وا.ج: رژولي. مؤ: رژولې] دوړولے. د ونو نه پاڼې راغورځولے. په ګوتو دانې بيلې کړې شوې.

**رڑون**:- (ر+ڑو+ن) [پ.اِس.مذ] رڑېدل. دوړېدل. دَونونه پاڼې راغورځېدل. ربڑون.

په سمه که په غرۀ وي د بهار خاصه ګلونه
آخـــر بـــه ئې رڑن وي د ګلونو له درخته     خوشحال

**رڑونه**:- (ر+ڑ+و+نَه) [پ.حمص] په ګوتو دانې بيلونه. دوړونه.

**رڑوونکے**:- (ر+ڑ+ وو+ن+کَے) [پ.فاع.مذ.وا.ج: رڑوونکي. مؤ: رڑوونکې] په ګوتو دانې بيلوونکے. دوړوونکے. د ونو نه پاڼې راغورځوونکے.

**رڑونګ**:- (ر+ ڑ+و+ ن +ګ) [اَف:پ(قاموس).حمص] رڑونه.

**رڑونه**:- (ر+ڑ+و+ نَه) [پ.حمص] رڑونګ. په ګوتو دانې بيلونه. دوړونه. دونو نه پڼې غورځونه.

**رڑېدل**:- (ر+ڑ+ې+د+ل) [پ.مص لا] په ګوتو دانې بيلېدل. دوړېدل. راپرېوتل.

چې په صبح شګفته په شام رڑي
څۀ امېد دے د ګلونو پـه ګلزار     رحمٰن بابا

**ارمان ـــــ**:- اِص.ارمان نۀ پاتې کېدل.

**رڑېدلے**:-(ر+ڑ ې+د+ لَے) [پ.مف.مذ.وا.ج: رڑېدلي. مؤ: رڑېدلې]. دوړېدلے. راپرېوتلے. په ګوتو دانې بيلې کړې.

**رڑېدنګ**:- (رَ+ ڑ +ې + دَ + ن + ګ) [اَف: پ (قاموس).حمص] رڑېدنه.

**رڑېدنه**:-(ر+ ڑ +ې + د + نَه) [پ.حمص] رڑېدنګ. رڑېدۀ. دوړېدنه. راپرېوتنه. دونو پاڼې راغور ځېدنه. په ګوتو دانې بيلېدنه.

**رڑېدونکے**:-(ر+ڑ+ې+دو+ن+کَے) [پ.مپ.مذ.وا.ج:رڑېدونکي.مؤ: رڑېدونکې] دوړېدونکے. راپرېوتونکے. د ونې پاڼې راغورځېدونکے.

**رڑېده**:- (ر+ ڑ +ې + ده) [پ.حمص] و ـــــ رڑېدنه.

**رس**:- (ر+س) [اَف:پ(قاموس).اِس.مذ]. (۱) توشه. ځوړې. جمع خوراک. (۲) يو قسم دارو. (۳) رسېدنه.

**رس**:-(ر+ س) [ه. اِس.مذ]. (۱) شيده.عرق. ست. جوهر. (۲) خوږوالے. سرينې.

**رس**:- (ر+س) [پ.اَنګ: رس. اِس.مذ. وا.ج: رسونه]. دکيک په شان خوند لرونکے خوږه ټکړه.

**رسا**:- (ر+ سا) [فا.ص]. سم. درست. په نخښه. په ځاے.

کــه حميــد خطــا دعــا کــړي پــه غفلت کښــې
دا خطـــا دُعـــا رســـا کـــړې زمـــا ربـــه

**ـــــ ګذار**:- اِص.پوخ ګذار. په نخښه لګېدلے ګذار.

مرګ د ژوند زما پوښتنه له مړو سترګو
پــه رســا ګــذار پوهېږي د تورزن لاس     حميد

**ـــــ لګېدل**:- اِص.په نخښه لګېدل.

زۀ حميــد کــړو کتــو د ســترګو غــوځ کــړم
پــه نصــيب خطــا ګــذار لګــي رســا

**ـــــ ويشتل**:- اِص.سم ويشتل. پوخ په نخښه ويشتل.

چـــې حميـــد غونـــدې وحشـــي ئـــې رســـا اوويشـــت
خـوښ خـوښ کېـږي پـه خپـل شـبت بانـدې پـه ځـاے درست

**رسالپور**:- (ر+سا+ل+پو+ر) [اِس معرفه] دنوښار او دمردان په مينځ کښې د سړک په ګاړه يوه مشهوره فوځي چاوڼۍ چې په کښې دهوا بازانو د تربيت بندوبست دے.

**رسالت**:- (ر+ سا+ ل+ ت) [ع.اِس.مذ]. استاذوالے. پيغمبري.

**رسالت مآب**:- (رسالت+م+آ+بَ) [ع.اِس ص.مذ]. د حضور صلی الله عليه وآله وسلم لقب.

**رسالدار**:-(ر+سا+ل+دا+ر) [فا.اِس.مذ.وا.ج:رسالداران] درسالې افسر چې د صوبېدار برابر وي.

**رسالداري**:-(ر+سا+ل+ دا+ري) [فا.اِس.مؤ.وا.ج:رسالدارۍ]. د رسالدر عهده. د رسالدار کار.

**رساله**:-(ر+سا+لَه) [ع.اِس.مؤ.وا.ج:رسالې]. (۱) وړوکے کتاب (۲) مياشتينے يا درې مياشتينے يا په کال کښې چاپ کېدونکے ميګزين. (۳) فوځي دسته.

**رسالينده**:-(ر+ سا+ لي+ ن + د ے) [اَف:پ(قاموس). اِس ص. مذ] په نخښه ويشتونکے. نشانه باز.

**رساى**:- (رَ + سا + ئيی) [فا.اِس.مؤ]. رسېدۀ. رسوخ. باريابي. رساى کېدل:- اِص.باريابي کېدل. چاته رسېدل. رساى موندل.

**ـــــ موندل**:- اِص. و ـــــ رساى کېدل.

**رَس بهري**:- (ر+س+بَه+ر+ي) [ه. اِس.مؤ]. يؤقسم خوږه مټهاى.

**رستم**:- (ر+س+تَ+م) [فا.اِس معرفه]. (۱) دايران يو مشهور پهلوان. (۲) عام پهلوان سړے. تورزن. زورور. مړنے.

مـا رستم د زمانې اوليد په سترګو
چې د يار له جوره ژاړي لکه کونډه     رحمٰن بابا

**رستم**:- (ر+س+ت+م) [پ.اِس معرفه]. د مردان ضلع د صوابۍ په تحصيل کښې يو کلے.

**رستمي**:- (ر + س + تَ + مي) [فا.ص]. تورزني. زړه ورتيا. مړانه. پهلواني.

**رسخت**:-(ر+س+خَ+ت) [پ(عا).ع: رخصت. اِس. مذ] رخصت. د تلواجازت. چټي.

**رسد**:(ر+سَ+د) [فا.اِس.مذ.وا.ج:رسدونه]. (۱) آمدن. وراکه.راشن. (۲) رسېدنه.

که مې يو ځـله رسـد اوشي تر سيند
نور دې نۀ وينم په تورو سترګو هنده     خوشحال

**ـــــ وَسول**:- اِص.د خوراک سامان رَسول.

**په ـــــ رسد**:- اِص.په اندازه.

**ـــــ رساني**:-(رسد+ر+سا+ني) [فا.اِس.مؤ]. د خوراک د سامان رسولو کار.

**رس ګله**:- (رَ+ س + ګ + لَه) [ه.اِس.مذ.وا.ج: رَس ګلې]. يو قسم خوږه مټهاى چې رنګ ئې سپين وي.

**ـــــ ليک**:-(ر س+ لي + ک) [اَف:پ (قاموس).اِس مذ.وا.ج: رس ليکونه] رسيد.

**رسم**:- (ر+س+ م) [پ:ب، خ + مر).اِس.مذ] د بوسو نه صفا شوي غله.

**رسم**:-(ر+س+ م) [ع.اِس.مص.وا.ج: رسمونه] رواج قاعده. دستور.

د تقليد رسم عدت ياري خپلوي کا
د هـــر چـــا نظر پــه خپله مُدعا     خوشحال

**ـــــ جوړول**:-اِص.رواج جوړول.دستور.جوړول.عادت جوړول.قاعده جوړول.

**ـــــ کېدل**:- اِص.رواج کېدل. دستور کېدل. عادت کېدل.

**ـــــ الخط**:- (ر+س+م+ل+خ+ ط) [ع.اِس.مذ]. ليک دود. دليک طريقه. د يو ټکي ياد کلي د ليکلو چل.

**ـــــ و رواج**:- (ر+ س + م + وَ + رِ + وا + ج) [فا.اِس.مذ]. دوددستور. قاعده.

په هغو کښې که څۀ بوي د عاشقۍ وي
پکښې نـۀ وي بوي د رسم او د رواج     رحمٰن بابا

**رسموني**:-(ر+س+مو+ني) [اَف:پ(قاموس). ص] ګندي مال. ډنډري. هغه ناپاک شوي غنم چې د غوبل نه پاتے شي او بيا جدا صفا کولے شي.

**ـــــ کول**:- اِص.ناپاک شوي غنم بيا صفا کول.

**رسمي**:-(رَ+س+ يي) [پ.ص]. رواجي ددستور او رواج مطابق. ددود متعلق.

**رسند**:-(ر+س+ن+د) [اَف:پ (قاموس).اِس.مذ.وا.ج: رسندونه]. هغه رومال چې د سخرانۍ له خوا دواده د زلمي د اس په غاړه پورې ترلے شي.

**رسوا**:- (ر + س + وا) [فا.ص]. ذليل. شومېدلے. بدنام. بې پردې.

خلوتيان په خپل خلوت کښې فراغت دي
د رســوا دے پــه رســوا بــاندې غرض     رحمٰن بابا

ــــ **کول**:- اِص.شرمول. بې پردې کول. بدنامول.

وے مې چې پــــه تـــــا پسې هر ګوره لېونے یم
وے ئې چې په دا عقل به لاصورت رسوا کړے خوشحال

ــــ **کېدل**:- اِص.شرمېدل. بې پردې کېدل. بدنامېدل. ذلیل کېدل.

تـــــئ ئې تـــر اوســـه پورې ټوقه ګڼې
څومره ستا مینه کښې رسوا شومه زهٔ صادق الله اورکزے

**رسوائي**:-(ر+س+وا+ئي)[فا.اِس.مؤ].ذلیل توب. ذلالت. بدنامي. بې عزتي. دووسي.

چې په خپلې رسوایی دې پروا نشته
نـــور بـــه څهٔ کړې په جهان د چا پروا رحمٰن بابا

**رسوخ**:- (ر + سو + خ)[فا. اِس.مذ]. اثر. رسای.رسېدنه. دخل. اعتبار. تعلق.

ــــ **پیدا کول**:- اِص.اثر پیدا کول. اعتبار جوړول. تعلق پیدا کول. رسای پیدا کول.

ــــ **پیدا کېدل**:- اِص.اثر پیدا کېدل. تعلق پیدا کېدل. رسای پیدا کېدل. اعتبار جوړېدل.

ــــ **لرل**:- اِص. تعلق لرل. رسای لرل. دخل لرل.

**رسول**:(ر+سو+ل)[ع.اِس.مذ. وا.ج:رسولان](۱)استازے.رااستولے شوے. (۲) پېغمبر

زمـــا دوې سترګې و لارې ته څلور شوې
که ښکاره د یار له رویه خدائے رسول کا خوشحال

پـــه دغه لارې به ورشي خدائے رسول ته
که څوک یُون کاندې په لار د دروېشانو رحمٰن بابا

**رسول**:- (ر+س+ و+ل)[اِپ.مص مت]. (۱) وروړل. چاته څهٔ څیز په لاس ورکول. (۲) پوهول. (۳) ترسره کول.

ع یار په ځان دې رسولے زما روح (علي خان)

**رسولے**:-(ر+س+و+لَے)[اِپ.مف.مذ. وا.ج:رسولي.مؤ:رسولې].(۱) وروړلے چاته څهٔ څیز په لاس کښې ورکړے. (۲) پوهه کړے. (۳) تر سره کړے.

رسولي ئې تر مراده هېڅوک نهٔ دي
هغه واړه هسې پـاتې شـو نامراده رحمٰن بابا

**رسولې**:- (ر+ سو+ل +ی)[اِپ.اِس.مؤ]. غټه دانه. غوټه.

**رسونګ**:- (ر+س+و+ن + ګ)[اَف:پ(قاموس). حمص] رسونه.

**رسونه**:- (ر+س+و+ نَه)[اِپ.حمص] (۱) رسونګ. وروړانه. چاته څهٔ څیز په لاس کښې ورکوونه. (۲) پوهونه. (۳) تر سره کوونه.

**رسوونکے**:-(ر+س+وو+ن+ کَے)[اِپ.فاع.مذ.وا.ج: رسوونکي. مؤ: رسوونکې]. (۱) وروړونکے. چاته څهٔ څیز په لاس کښې ورکوونکے. (۲) پوهوونکے. (۳) تر سره کوونکے.

**رسویل**:- (رَ+ سو+يَ+ ل)[اِپ(ب.خ) مص مت] چخنې کول. په زمکه بد بد مړل.

**رسوینه**:-(ر+سو+ي+نَه)[اِپ(ب.خ. حمص] چخنې کونه. په زمکه بد بدمړنه.

**رسویونکے**:(ر+سو+یو+ن+کَے)[اِپ(ب،خ).فاع.مذ.وا.ج:رسویونکي.مؤ: رسویونکې] چخنې کوونکے. په زمکه بد بد مړونکے.

**رسه**:-(ر.ـسه)[اِپ.اِس.مذ.وا.ج: رسے]. رسۍ. پړے. بیا سته.

**رسنۍ**:- (ر + س + نَیی)[اِپ.اِس.مؤ]. و ــــــ رسه.

**رسید**:- (ر+سي+د) [فا.اِس.مَذ.ج: رسیدونه] د څهٔ څیز د وصولېدو یاموندلې کېدو لیکلے کاغذ.

ــــ**اخېستل**:- اِص.(۱) د څهٔ څیز د وصولېدو لیکلے کاغذ تر لاسه کول. (۲) داخستلې څیز لیکلے کاغذ اخېستل.

ــــ **جوړول**:- اِص.د څهٔ څیز د وصولېدو لیکلے کاغذ جوړول.

ــــ **لیکل**:- اِص.د څهٔ څیز د وصولېدو کاغذ لیکل.

ــــ **ورکول**:- اِص. (۱) د څهٔ څیز د وصولیدو لیکلے کا غذو ورکول. (۲) د خرڅ شوې څیز لیکلے کاغذ ورکول.

ــــ **ورکېدل**:- اِص. (۱) د څهٔ څېز د وصولېدو لیکلے کاغذ ورکولے کېدل. (۲) د خرڅ شوې څیز لیکلے کاغذ ورکول.

**رسېدل**:- (ر+ سے+ د + ل)[اِپ.مص لا]. (۱) څهٔ ځاے ته ورتلل. (۲) پوهېدل. (۳)څهٔ په لاس راتلل. (۴) برابرې. (۵) مېوه پخېدل. (۶) څهٔ کار تر سره کېدل.

ستا اننګو ته رسېدل نهٔ دي ګران
خـو لکه اوښکه څڅېدلے نهٔ شم حمزه شنواري

یو خو اس ورسره شته دے وئے اوغواړه
دلالان ئې نـــــهٔ رســـېږي لـــــه قیمته بابوجان

نهٔ رسېږي ستا و حسن وته حوره
څهٔ به رسي و مېرمن وته مزدوره رحمٰن بابا

**رسېدلے**:- (رَ+ سے+ د+ لَے)[اِپ.مف.مذ.وا.ج: رسېدلي. مؤ: رسېدلې].(۱) څهٔ ځاے ته ورغلے. (۲) پوهه شوے. پوهېدلے. (۳) مېوه پخه شوے. (۴) څهٔ کار تر سره شوے. (۵) حصه په لاس راغلے. (۶) برابر شوے.

**رسېدنګ**:- (ر+ سے+ دَ + ن + ګ)[اَف:پ(قاموس). حمص]رسېدنه.

**رسېدنه**:-(ر+سے+د+نَه)[اِپ.حمص].(۱) رسېدنګ. رسېدهٔ. څهٔ ځاے ته ورتلنه. (۲)پوهېدنه.(۳)مېوه پخېدنه(۴)څهٔکار تر سره کېدنه (۵)حصه په لاس راتلنه. (۶) برابر کېدنه.

**رسېدون**:- ر+ سے+ دو+ن)[اِپ.اِس.مذ]. رسېدنه. وصال. یو ځاے کېدنه.

**رسېدونکے**:(ر+سے+دو+ن+کَے)[اِپ.مف.مذ.وا.ج:رسېدونکي.مؤ:رسېدونکې] (۱) څهٔ ځاے ته ورتلونکے. (۲) پوهېدونکے. (۳) مېوه پخېدونکے. (۴)څهٔ کار تر سره کېدونکے. (۵) برابر کېدونکے. (۶) حصه په لاس راتلونکے.ګ

**رسېده**:- (ر + سے + ده)[اِپ.حمص]. و ــــــ رسېدنه.

**رسیدي**:- (رَ+ سي + دي) [فا.اِس] درسید سره متعلق.

ــــ **ټکټ**:-(رسیدي+ ټ + کَ + ټ)[اِپ تر.اِس.مذ.وا.ج: رسیدي ټکټونه] هغه ټکټ چې په رسید لګولے شي. داد ډاک د ټکټ نه په بل رنګ وي.

**رسیوالا**:-(ر+سی+وا+لا)[اِپ.اِص ص. مذ]. پرې خرڅوونکے.د بیاستو کاروبار کوونکے

**رِسیور**:-(ر+سي+و+ر)[انګ.اِس.مذ.وا.ج:رسیورونه]دټیلیفون هغه حصه چې خبرې کوونکے ئې خپل غوږ سره لګوي او د بل خبرې پرې اوري.

**رش**:- (ر+ش)[اَف:پ(قاموس).اِس.مذ]. (۱) بوره. براده. پوست څیز. (۲) زوه. خیرے. (۳) پېروے. اَریاش ملاۍ. (۴) غرمکے. ګرمکے. د ګرمۍ دانې. (۵) سر سرے (خل)

ــــ **لرے کول**:- اِص. د بدن نه زَوه یا خیرے لرے کول.

**رَش**:- (ر+ ش)[اِپ.اَس.مذ]. (۱) پېروے. ملائۍ. اَریاش. (۲) خوږ شربت.

ددې دور حریفـــــان کــــه شــــودهٔ پــــئ دي
زهٔ خـوشحـال د شودو پیو په سر رَش یم

ټپه: که تهٔ زما چولې ته راغلې
په رش ککړه خولهٔ به تاته درکومه!

**رش**:- (رَ+ ش)[اَنګ. اِس.مذ]. ګڼه ګوڼه. زیات خلق.

ــــ **جوړول**:- اِص.ګزمه ګوڼه جوړول. زیات خلق راغونډېدل.

ــــ **جوړېدل**:- اِص.ګڼه ګوڼه جوړېدل. زیات خلق راغونډېدل.

ــــ **کول**:- اِص. په څهٔ کار بیړه کول.

**رشپیلے**:- (ر+ش+پیے+ لَے)[پ.اس.مذ.وا.ج: رشپیلی]. چرګې هومره غټه یوه مرغۍ چې مښوکه ئې ډېره لویه وي.

**رشتلے**:-(ر+ش+ت+لے)[پ.اس.مذ.وا.ج: رشتلي] په درمند کښې اخري پاتې شوے شے.

**رشته**:-(ر+ش+تَه)[فا. اس.مؤ.وا.ج: رشتې] (۱) خپلوي. عزيزولي. عزيزداري. رشته داري. (۲) نزديکت. (۳) داودۀ پيغام.

ـــــ **جوړول**:- اِص.خپلوي کول. چاته ځان ورنزدې کول.

ـــــ **جوړېدل**:- اِص.عزيزولي کېدل. چاسره تعلق جوړېدل.

ـــــ **ختمول**:- اِص.خپلوي ختم کول. کوژدن ماتول.

ـــــ **ختمېدل**:- اِص.خپلوي ختمېدل. کوژدن ماتېدل.

ـــــ **غوښتل**:- اِص.د چانه دوادۀ د پاره خور لور غوښتل. چاته د واده جرګه کول.

ـــــ **کول**:- اِص.عزيزولي کول. خپلوي کول.

ـــــ **کېدل**:- اِص.عزيز ولي کېدل. خپلولي کېدل.

**په ـــــ کښې**:- اِص.په عزيز والي کښې. په خپلولۍ کښې.

**درشتې**:- اِص.د خپلولۍ. د عزيز ولۍ.

ـــــ **دار**:- (رشته+دا+ر)[فا.اس ص. مذ.وا.ج: رشته داران (مؤ.وا: رشته داره ج.رشته دارې)]. خپل عزيز. خپلوان. د خپلې کورنۍ. په خاندان کښې شامل.

ـــــ**داري**:-(رشته+دا+ري)[فا.اس.مؤ].خپلولي.عزيزولي.عزيزداري. خانداني نزديکت.

**رشخه**:- (ر+ ش + خه)[پ.اس.مؤ]. رشکه.د شوتلو يو قسم.

**رشک**:- (ر+ش+ک)[اَف:پ(قاموس).اس.مذ]. (۱)د خارش مرض.(۲) کوټه. قلپ. درغل. رشکين.

**رشک**:- (ر+ش+ک)[فا.اس.مذ].د بل شته من والي ته ذرۀ پنحېدل. چې په کښې تورنيتي نه وي.

که هر څو شو پيچ و تاب له ډېره رشکه
ستا د زلفو په څېر نۀ شو د سنبل رنګ حميد

**رشکه**:- (ر+ش+ کَه)[پ.اس.مؤ]. و ـــــ رشخه.

**رشکۍ**:- (ر+ش+ک+ئي)[پ.اِس.مؤ]. (۱) ورکوټې غونډۍ. (۲) درز ګوټې. واړه شان رَشه.

**رشکۍ**:- (ر+ش+ک+ئي)[پ.اس معرفه]. د نوښار او د مردان په مينځ کښې د سړک په غاړه يو کلے.

**رشکين**:-(ر+ش+کي+ن)[اَف:پ(قاموس) ص.مذ(مؤ وا:رشکينه ج: رشکينې)] و ـــــ رشک (۲).

**رش لرے**:- (ر+ش+ لَ +رے)[اَف:پ (قاموس).اس.مذ.وا.ج:رشلري. مؤ: رش لرې]. د حمام د سامان کڅوړه.

**رشوت**:- (ر + ش + وَ + ت)[ع.اس.مذ.وا.ج:رشوتونه]. بډې. ناجائزه نذرانه.

ـــــ **اخېستل**:- اِص.بډې اخستل. ناجائزه نذرانه اخستل. رشوت قبلول.

ـــــ **خوړل**:- اِص.بډې خوړل. ناجائزه نذرانه خوړل. د خنزير غوښه خوړل.

ـــــ **قبلول**:- اِص.و ـــــ رشوت اخستل.

ـــــ **ورکول**:-اِص،بډې ورکول. ناجائزه نذرانه ورکول.

**په ـــــ کار اخستل**:- اِص.په بډې ورکولو خپل ناجائز کار برابرول.

**په ـــــ کار کول**:- اِص.د چا څۀ کار په بډو تر سره کول.

ـــــ**خور**:-(رشوت+خو+ر)[فا.اس ص. مذ. وا. ج: رشوت خوارۀ(مؤ.وا: رشوت خوره ج:رشوت خورې)]. رشوتي. هغه څوک چې په رشوت کار کوي. بډې خور. بډې اخستونکے.

**رشوتي**:-(ر+ش+و+تي)[فا.اس ص.مذ.وا.ج: رشوتيان].و ـــــ رشوت خور.

**رشه**:-(ر+ شه)[پ.اس.مؤ].(۱) دود دستور خوي. عادت. (۲) خوراک. دخوراک سامان. (۳) پېروے. ملاۍ. بالاۍ. ارياش.

**رشه**:-(رَ.شَه)[پ.اس.مؤ.وا.ج: رشې]. (۱) د پاکې غلې ډېرۍ يا انبار. (۲)حلوا. وربشه. روشه (۳) بوج.

ـــــ **اچه کول**:- اِص.رشه صفا کول. رشه پاکول. رشه ستره کول. د غنمو دلۍ پاکول.

ـــــ **اَچه کېدل**:-اِص.رشه پاکېدل.رشه ستره کېدل. د غنمو دلۍ صفا کېدل.

ـــــ **پاکول**:- اِص.و ـــــ رشه اچه کول.

ـــــ **پاکېدل**:- اِص. و ـــــ رشه اَچه کېدل.

ـــــ **تلل**:- اِص.د رشې وزن کول. رشه پېمدل. رشه په اوړو کول.

ـــــ**ستره کول**:- اِص.و ـــــ رشه اَچه کول.

**ستره کېدل**:- اِص. و ـــــ رشه اَچه کېدل.

**په رَشو رشو**:- اِص. په دلو دلو. په ډېرو. ډېر زيات.

**رښ**:-(ر+ش ياخ)[اَف:پ(قاموس).اس.مذ]. شيره. ټينګ اوُږوخ شربت. روښا. کړوبے.

**رښتمنے**:-(ر+ش يا خ + ت +م+نَے) [اَف:پ (قاموس) .اس.مذ] .ثبوت . رښتياوالے. تحقيق.

ـــــ **پرې کول**:- اِص.ثبوت کول. خبره تحقيق ته رَسول.

ـــــ **کول**:-(اَف) اِص.تحقيق کول. خبره رښتياؤ ته رسول.

**رښتنګلوي**:-(ر+ش+يا خ+ ت+ن+ګ+ل+ وي)[اَف: پ (قاموس). اس. مؤ]. (۱) دوستي (۲) رښتياوالے

ـــــ **کول**:- (اَف) اِص.(۱) دوستي کول. (۲) رښتيا کول.

**رښتنے**:-(ر+ش يا خ+ت+نَے)[پ.اس ص.مذ.وا.ج:رښتني.مؤ:رښتنې]. رښتياويونکے.

**رښتني**:- (ر+ش يا خ+ت+ني)[پ.اس.مؤ]رښتيا.

**رښتون**:- (ر+ش يا خ+تو+ن)[پ.اس ص. مذ]. رښتين. رښتياويونکے.

**رښتونے**:-(ر+ش ياخ+تو+نَے)[پ.اس.مذ.وا.ج: رښتوني. مؤ: رښتونې]. رښتيا ويونکے.

**رښتيا**:-(ر+ش يا خ+ت+يا)[پ.اس.مؤ]رشتيا.درست. ټيک. حق. بې شکه. راستي

خدا ے ئې مه ګڼه ببشکه چې بنده دے
نـور ئې کل واړه صفات دي پـه رښتيا رحمٰن بابا

ـــــ **وئيل**:- اِص.حقه خبره کول. ټيک خبره کول. درست خبره کول.

**په ـــــ** :- اِص. په حقيقت کښې.

ستا و مخ ته که څوک شمس و قمر وائي
دروغ نـــۀ دي پـه رښتيا دے دا حديث رحمٰن بابا

ـــــ**ګو**:-(رښتيا+ګو)[ف.صف]. (۱) په رشتيا قسم خوړل. (۲) رښتيانو د رښتياو. په رښتيا (۳) (ف تر) رښتياويونکے، رښتونے.

**رښتيانو**:- (رښتيا + نو) د ـــــ و ـــــ رښتيانو.

**رښتيانے**:-(ر+ش يا خ + ت + يا + نَے)[پ.ص.مذ.ج: رښتياني. مؤ: رښتيانې] په رښتيا. د رښتياؤ.

**رښتين**:- (ر+ش يا خ+ تي+ن)[پ.صف.مذ.مؤ. رښتينه، ج: رښتني]. و ـــــ رښتون.

**رښتين ـــــ**:- (رښتين + ت + يا)[پ.اس.مؤ] رښتياوالے.رښتين واله. راست والے. رښتينې.

**رښتينواله**:(رښتين+وا+لَ)[پ.اس.مؤ]. اخلاص،صداقت،رښتياوالے. رښتيي

**رښتینوالے**:- (رښتین + وا + لے)[پ.اس.مذ]. و ـــــ رښتینواله.

**رښتینولي**:-(رِ+ ش یاخ + لي + ن + وَ + لي)[پ.اس.مؤ] الزام یا خبره ثبوت یا حق ته رسول. خبره یا معامله رښتیاو ته رایستل.

**رښتیني**:-(رِ+شیا خ + تي + نِ + ي)[پ.اس.مؤ]. (۱) رښتینوالے. صداقت. (۲) رښتینولي.

د عــاشــق د رښتینۍ نخښـه هم دا ده
چې په عشق کښې په حساب کاندي خرڅ    خوشحال

**رښتینے**:-(رِ+ش یا خ+تي+نے)[پ.اس.مذج: (رښتیني. مؤ.وا: رښتینه. ج:رښتینې) صادق. اخلاص من ـ په رښتیا ، بې کوټه.

**رښک**:-(ر+ش یاخ+ک)[ق.اِس.مذ.ج: رښکونه] کرښه. خط. لیک. رښکه دڅۀ څیز دراکښلو نخښه.

**رښکه**:-(رِ+ش یا خ + کَ)[ق.اِس.مؤ ج: رښکې]. (۱) و ــــ رښک. (۲)تراشه. توږته . ټوټه.

**رښکې**:- (ر+ش یا خ+ک + ئیی)[ق.اِس.مؤ]. ریښه. د کپړې اوږده. نرۍ ټوټه.

**رښېدل**:- (ر+ شي یا خي+د+ل)[ق.س]. ترهېدل، ویرېدل.

**رصاص**:- (ر+ صا+ ص)[ع.اِس.مذ].(۱) سپینځي، قلعي. (۲) د ټوپک ګولۍ.

**رصانت**:(ر+صا+ن+ت)[ع.ص.مؤ]. کلکتوب، کلکوالے،ټینګواله.مضبوطوالے

**رصد**:- (ر+ص+ د)[ع.فع.مذ.] کتل. ملاحظه. شاهده.

**ـــخانه**:- (رصد+ خا+نَ)[فاتر. اس.مؤ.ج: رصد خانې:] رصدګاه. دستورو د کتلو برج ـ دستورو د شاهده کولو مناره.

**ـــ ګاه**:-(رصد+ ګاه + ه)[امر (موند)ج: رصد ګا هونه]. و ـــــ رصد خانه

**رمین**:- (ر+ مي + ن)[ع.ص.مذ]. کلک. ټینګ. مضبوط.

**رض**:-(ر+ض)[ع.اِس مخفف]د رضی الله عنه مخفف. خدا ے د ے ترې نه راضي شي. اکثر د صحابو د نوم سره دالیکلے شي عموماً رضي لیکلے شي.

**رضا**:- (ر+ ضَا + (زا)[ع.اس.مؤ]. (۱) مرضي. رضامندي. خوشي. خوښه. (۲) اجازت. رخصت. چټې.

که په خپل رضا دروم چاره نشته
کـه زما په رضا دروم خلۀ به راکه    خوشحال

**اونا**ـــــ:- خواه ناخوا ، که زړۀ غواړي اوکه ته طوعا و کرها.

ـــ **پاسلول**:- اص.خپله خوشي یا مرضۍ بل ته سپارل.

هـــر چې خپـلـه رضـا پـاسلـوي قضاته
که هر څو په ځان ناخوش وي خوش خرم شي    رحمٰن بابا

ـــ **په قضاسپارل**:خپله رضایا خوښه د قضا یعني د خدا ے حکم ته پرېښودل.

رضا دلے په رقضا سپارلے نۀ شي
دغه زهر په ځان ولې شکر نۀ کړي    رحمٰن بابا

ـــ **کول**:- اص.(۱) رضا کول. د چاپه مرضۍ تلل. د بل په خوښه کار کول. (۲) په خپله مرضۍ کار کول. په خپله خوښه تلل.

ګاه ئې کښیوني په تخت کله په خاوره
زمـانــه رضـا د هیچا مـدام نـۀ کا    رحمٰن بابا

هـېڅ سـانه مـه کـړه خوشـحاله
ښائســـته خپلــه رضـا کـــړه

ـــ **کېدل**:- اص. خوشحالېدل. څۀ کار ته غاړه کېښودل. خبره منل.

جــور ظلـم د محبوب په سر قبول کړه
اے رحمته پر هر څۀ د دوست رضا شه    رحمت داوي

**په ـــ**:- اص. په مرضۍ ـ په خوښه ع: په رضائې خاطر ورکړه د خپل یارته.

**په ـــ تلل**:- اص. په خپله مرضي، په خپله تلل (یا روانېدل) په خپله خوښه تلل. په خپله خوښه کار کول ـــ د چا د بل په مرضۍ تلل. د بل په خوښه کار کول.

**ـــ رغبت**:-(رضا+ر+غ+بَ+ت)[پ.ص] په ـــ په خوښه. په ـــ په خپله مرضۍ.

**رضاعت**:- (ر + ضا + زا + عَ + ت)[ع.اِس.مؤ]. (۱) د مور پۍ ځښل. ماشوم ته خوا ، یاتې یا د پیو ورکولو کار . (۲) هغه مؤده چې ماشوم په کښې د مور پۍ ځښي (تقریباً دوه کاله)

**رضاعي**:- (ر+ ضا+عي)یا (ر ــــ ) [ع.ص.] په پیو ځښلو کښې شریک. لکه رضاعي وروریا رضاعي خور. هغه ماشومان چې دپردو خلقو زامن لوڼه وي خو چې د یوې زنانه پۍ د ځښي نو هغوي خپلو کښې ورونه خویندې شي. دوي د پیو شریک ورور یا خور هم ویلے شي.

**ـــ کار**:- (ر+ ضا (زا) + کار + ر)[فاتر. ص. ند. وا . ج: رضا کاران. (مؤ : رضاکاره. ج: رضا کارې)]. په خپله رضا او خوښه اوبې معاوضې د خلقو خدمت کوونکے. (والنتییر).

**ـــمن**:- (رَ+ضا(زا) + م + ن)[پ ـــ مخفف د رضا مند]د ـــ رضا مند

**ـــمند**:- (رَ + ضا(زا) + م + ن + د)[فا. اِس ص . ند]. (۱) رضا شوے. راضي. (۲) خوشحاله. راضي. (۳) پخلا شوے. (۴) تیار. اماده.

اقـربـا راتــه عقریب شول
رضا مندې په تعجب شول    خوشحال

**ـــمندي**:-(ر+ضا+م+ن+دي)[فا.اِس+مو].منظوري. خوښه، رضا. مرضۍ.

**رضای**:- (ر+ ضا (زا) + ئي)[ع.ف.اِس.مؤ] برستن نهالۍ. توشک.

**رضوان**:- (رِ + ض(د) + وا + ن)[ع، اِس+مذ]. (۱) جنت.(۲) د جنت دا روغه (۳) رضامندۍ. خوښي.

خـو که دا روباهیت مې د رضوان تر دره بیائي
د مالک په دور قسم شه که پوټے هم راته ښائي    پرېشان خټک

**رضواني**:-(ر+ض (د)+وا+ن+ي)[ع.اِس.مذ]. (۱) هغه چې رضوان د جنت سره تعلق لري. جنتي. (۲) دیو پخوان عالم فاضل تخلص چې د پښتوئې ډېر خدمت کړے دے نوم ئې میراحمد شاه وۀ. دا کبر پورې اوسېدونکے وۀ.

**رضوي**:- (ر+ض+ وي)[ع.ص]. د امام علي موسیٰ رضا رضہ سره نسبت لرونکے.

**رضي الله عنه**:– (رَ+ض(د) + يَ + ل + لا+ لا+ عَ + ن + ه) (ع + کلمه)خدا ے پاک دې د هغه نه راضي وي. داد عائیه کلمه خاص د صحابو دپاره وئیلے کېږي. خوځینې خلقو امامانو اولوړو بزرګانود پاره هم استعمال کړے ده.

**رضیع**:- (ر+ ضي+ ع)[ع.ص+مذ]. (۱) په تي پورې، تي دوې. (۲) هغه (دوه) ماشومان چې دیوې دائې پۍ ئې ځښکلې وي، دیو بل رضیع بللے شي.

**رطب**:- (ر + ط + ب)[ع.اس+ب]. تازه کجوره. خرما.

**رطب**:- (رَ + ط + ب)[ع.ص.مذ]. لوند. خوشت، خیشت. تازه.

ـــ **ویابس**:- (رَ + ط + ب + وَ + یا + ب + س)[ع.س]. وچ اولاؤنده ښۀ اوبد. ګډ ګاډېره.

ـــ**اللسان**:- (ر+ط+ب+ل+ل+یا+ن)[ع.ص]. لغ.لونډژبے صفت یا مدح کوونکے.

**رطل**:-(ر+ط+ل)[ع+اِس+مذ+وا.ج.رطلونه](۱)دعربودوزن یوه پیمانه چې تقریباً د یو پونډ یا د نیم سیر برابره وي. (۲) رطل د شرابو (لوے جام).

**رطوبت**:- (ر+طو+ ب + ت)[ع.اس. مؤ.ج رطوبتونه]. (۱) نو. نهی. نم. لوندوالے. زیم. (۲) د متیازو نۀ وچېدل. د سرو هغه مرض چې تشې متیازې ئې څاڅي.

**ـــلرل**:- اِص. نو لر. نم لرل. لوند والے لرل.

**رعايا**:-(ر+عا+يا)[ع.اس.مؤ+ج+وا،رعيت]. ديوبادشاه د حکم لاندې اوسېدونکي خلق، محکوم، اولس.

**رعايت**:- (ر + عا + يَ + ت)[ع+اس.مؤ] لحاظ، خيال.

پهدا ښار کښې څرګند شراب خرڅېږي
محتسب د باده نوشو رعايت کا خوشحال

ـــ **کول**:- اص(۱) لحاظ کول. خيال ساتل. نرمي کول. (۲) بيعه يا قيمت کول.

پهدا ښار کښې څرګند شراب خرڅېږي
محتسب د باده نوشو رعايت کا خوشحال

ـــ **کېدل**:- اص (ـــ د چا)د چا لحاظ کېدل. نرمي کېدل.

**رعايتي**:- (ر+عا+يَ+تي)[ع.ص].د لحاظ سره. د مخ ملا حظې سره لکه رعايتي قيمت يا بيعه.

**رعب**:- (ر+ع + ب يا رو + ب)[ع.اس. مذ]ويره. دبدبه. شان و شوکت . رد بد۔ دوړه دبکه. دباؤ.

ـــ**اچول**:- اص. هيبتغورځول. ځوک پهخبرو ويرول. اثر غورځول. رعب غورځول.

ـــ **اچېدل**:- اص. هيبت غورځېدل. په خبر ويرول. په رعب يا دباؤ کښې راتلل. مرعوب کېدل.

ـــ**خوځول**:- اص.دوړه ديکه کول.

ـــ**غورځول**:- اص.و ـــ رعب اچول.

ـــ **کېيناستل**:- اص ،ويره يا اثر قائمېدل. پهدباؤ کښې راتلل.

ـــ **کښېنول**:- اص. ويره يا اثر قائمول. دباؤ کښې راوستل.

ـــ **منل**:- اص.په رعب کښې راتلل. ويرېدل د چا د شان او د زور اثر منل په دباؤ کښې راتلل. رعب.

**بې رعبه**:- اص. بې اثره. رعب

ـــ **کېدل**:- اص. بې اثره کېدل رعب يا دباو نه پاتې کېدل.په رعب کښې راتلل. اص.و ـــ رعب منل.

**په ـــ کښې ګر ځېدل**:-اص. په شان کښې ګرځېدل. په دبدبه کښې ګرځېدل. تيرۀ تيرۀ ګرځېدل، په کبر ګرځېدل.

ـــ **داب**:-(رعب يا دوب + دا + ب) [پ.ص]دبدب. اثر. شان و شوکت. رعب داب

ـــ **لرل**:- اص. دبدبه لرل، شان و شوکت لرل.

ـــ **دار**:-(رعب + دا+ ر)[فاتر. اس ص. مذ.مؤ: رعب داره. ج رعب دارې] درعب خاوند. رعب لرونکے. دبدبې والا۔

**رعد**:- (ر +ع + د)[ع + اس + مذ]. تندر، بجلی. تنا ګرزا

**رعشه**:- (ر+ ع + شَ)[ع.اس ص .مؤ] رېه. دېندې. رېږدۀ. رېږدنه. ربږدېدنه.رګېدنه. د ګوزن مرض.

**رعنا**:- (ر+ع + نا)[ع.ص]. ښائسته ښکلے، خيالے. خيالجن.

**رعنا**:- (رَ + ع + نَا)[ع.اس.مذ] (۱) د يو مشهور ګل نامه چې دننه سور او دبهر نه زيړ رنګ لري. ګل رعنا . (۲) هر دو رنګه څيز

**رعناى**:-(ر+ع+نا+ ئی)[ع.ص]. (۱) ښائست. ښکلا. (۲) ميکن. د ځان سنبالولو او جوړولو کار.

**رعونت**:-(ر+عو+نَ+ت)[ع.اس.مذ]. کبر. لوئي. غرور. فخر. ځان لوے ګڼل.خود بيني. خو پرستي.

**رعيت**:-(رَ+عي+يَ+ت)[اس. مؤ]. رايت محکوم اولس. د حکم لاندې خلق.

څۀ حاکم څۀ رعيت غريب وزير
جهان واړه د بلا په لکۍ سور شۀ حميد

**رغ**:- (رَ + غ)صف (دروغ مخفف). و ـــ روغ

ـــ **شوے**:- (رَ + غ + شَ + وَے)جوړ شوے. سازشوے. تعمير شوے.

ـــ **کړے**:- (ر ـــ ک. ړَے) جوړ کړے. ساز کړے. تعمير شوے.

**رغ**:-(رَ+غ)[پ(ظفر). اص.مذ]: صلاً ار دغ دے چې په عربي. کښې اردق شوے دے. اوږحے. تيغ.

**رغ**:-(رَ+غ)[ق.اس.مذ.ج: رغونه.(۱)دراغۀ مخفف،دغرۀ لمن،(۲)ځرګند. صفا.

**رغا**:- (رَ + غَا)[پ.اس.مؤ] اوږده چغه.

**رغاندل**:- (ر + غا + ن + د + ل)[پ.اص]. (۱) اوږ ده چغه وهل. (ق) (۲) د شاربلو اواز. اواز ايستل.

شودۀ چې رضامندي ژناو روغ کا
هر څوک پوهېږي چې دا دروغ کا خوشحال

**رغاو**:- (ر+ غا+ و)[ق.اس. مذ] رغاوه. ويزارېدنه. تعلقات پريکونه.

**رغاوه**:- (ر + غا + ؤ (ه))[ق.اس.مؤ].و ـــ رغاو.

**رغاوېين**:(ر+غا+ؤ+ن+ړي+ن)[ق.ص.مذ .(مؤ.رغاوېيزه.ج.رغاوېيزې)]ښائسته ښکلے. ډولے.

**رغبت**:- (رَ + غ + بَ + ت)[پ.اس.مو.ع.رغبا]. مينه. خواهش .ميل.

د سپين مخ د تورو څېو له رغبتۀ
منت بار د هر سفېد او د سياه يم رحمٰن بابا

ـــ **کول**:- اص. زړۀ کېدل. مينه کول. خواهش کول.

ـــ **کېدل**:- اص. زړۀ کېدل مينه کېدل. خواهش کېدل. خواته کېدل.

**رغبولي**:- (ر+غ + بو+لي)[ق.ا.ص. ج.مؤ] يو شين نازک بوټے چې د پسرلي په اولو ورځو کښې په غرۀ کښې پېد اکېږي. خلق ئې وچ کړي او ماستو ته ئې ورګډ کړي اثر ئې يخ دے.

**رغث**:- (ر+غ + ث)[ع.اس. مذ]. دانار د ونې ګل. ګلنار. ګل انار۔

**رغد**:-(ر+غ+د يا ر+غ+د) [ع.ص.مذ]عيش. خوشحالي د ژوند ارام. بسياري.

**رغدے**:- (د + غ + دے)[ق.اس.مذ]. (۱) چست و چالاک سړے. (۲) روغ رمټ. جوړ. تندرست.

**رغريوے**:-(ر+غ+ر+يو + يے)[ق.اس.مذ]د فصل چوکېدار . فصل ژغورونکے.

**رغړند**:(ر+غ+ړ+ن+د)[پ.اس.ص.مذ(مؤ.رغړنده.ج.رغړندې)](۱)رغښتونے۔ غړېدونکے. هغه څيز چې رغړېدے شي. (۲) څوبړ چې په هغې څيزونه رغړي.

**رغړندونکے**:- (ر+غ +ړ+ن+دو+ کے)[پ.اس ص. مذ. وا + ج: رغړندوکي.مو: رغړېدونکې] هغه ماشوم چې رغړي. هغه څيز چې رغړېدونکي دي.

**رغړول**:- (+غ + ړ + و + ل)[پ.مصامت]. (۱) بازی. ورکول. ليلول. تيلول. (۲) ککولے کول. خولۀ کښې اوبه ګرځول ـــ د اګرځول. د کنګا لولو د پاره خولۀ کښې اوبۀ اچول.

دوه غابښې اوبښه ئې وينو رغړوله
هسې بې حسابه خلق شۀ طوفان رحمٰن بابا

**رغړول**:-د غونډ شان څيز. په زمکه باندې څرخېدلو يا دار خو نو اړولو په ذريعه د يو ځاے نه بل ځاے ته حرکت ورکول په لغړولو د يو ځاے نه بل ځاے ته حرکت ورکول. (اردو لړهکنا)ګرګاړے کول. ګاډې کول.

**رغړول**:- د دروغو ګاډي رغړول. بې کچه زيات دروغ وئيل. په دروغو وئيلو کښې مبالغه کول.

**رغړولے**:- (ر+غ +ړو+ لَے)[پ.مف.مذ.ج. رغړولي: مو : رغړولې] (۱) لوغړولے. ليلولے. تيلولے .(۲) د کدګا لولو د پاره خولۀ کښې اوبۀ اچولے. (۳) ګرګادے کړے.

**رغړونګ**:- (ر + غَ + ړَ + وَ + ن + ګ)[ق.حمص] و ـــ رغړونه.

**رغړونه**:-(ر+غَ+ړ+و+ نَه)[پ.حمص] (۱) رغړونګ. لو غړونه ليلونه. تيلېدنه.(۲) د کنکالولو د پاره خولۀ کښې اوبه اچونه.

**رغړوونکے** :(ر+غَ+ړ+وو+ن+کے)[اپ.فاع.مف.وا.ج.رغړونکي.مو.رغړونکې)
(۱)لوغړونکے. لیلوونکے. تیلوونکے (۲) خولۀ کنګالوونکے.
**رغړي**: (ر + غ + ړَ + ي)[ق.ص] خاص قسم سپینې سترګې.
**رغړېدل**:- (ر+غ +ړې+د+ل)[اپ.بص لا] د غونډ څیز په زمکه باندې د ځرخېدلو یا داړخونو اړولو په ذریعه دیو ځاے نه بل ځاے ته حرکت کول. په لغړلو د یو ځاے نه بل ځاے ته حرکت کول (اردو. لڑهکنا) ګرګاډے کېدل. ګاډې کېدل. لیلېدل تیلېدل.

نمر سپوږمی. مې د پالنګ د پاسه رغړي
چې مې یـــار پـــه بالنبت اولګوي سر رحمٰن بابا

**رغړېدلے**:- (ر+غ+ړې+د+لَے)[اپ.مف.مذ.ج.رغړېدلي.مؤ.رغړېدلې.الیلېدلے. تیلېدلے
**رغړېدنګ**:- (ر + غ + ړې + د + ن + ګ)[ق.حمص]. رغړېدنه
**رغړېدنه**:-(ر+ غ + ړې + د + نَه)[اپ.حمص] رغړېدنګ. رغړېدۀ. لیلېدنه.تیلېدنه. ګرګاډے کېدنه.
**رغړېدونکے**:-(ر +غ+ړې +دو+ن+کَے) [اپ.مف.مذ.ج :رغړېدونکي: مؤ:رغړونکې] لیلېدونکے. تیلېدونکے. ګرګاډے کېدونکے.
**رغړېده**:- (ر + غ + ړې + دۀ)[اپ.حمص] و ـــــ رغړېدنه.
**رغزے**:- (ر+غ+ز ے)[اپ.اس.مذ.ج: رغزي] (۱) د غرۀ په لمن کښې اوچته زمکه چې بوټی په کښې راختلې وي. (۲) اسم معرفه. د ډیره اسماعیل خان منلې ټانک تحصیل کښے د یو ځاے نوم.
**رغښت**:- (ر + غ + ش یا خ + ت)[اپ.فع.مذ.مو رغښته) رغښتنه ج: رغښتې .رغښتنې] (۱) رغړېدنه. (۲) لوټکی. لوغړېدل. (۳) زغل. منډه. (۴) د رغښتل مصدر نه حاصل مصدر
**رغښتل**:- (ر + غ + ش یا خ + ت + ل) [اپ.مص لا . (۱) رغړېدل (۲) بازۍ خوړل. لوټکی خوړل، بازیغرے خوړل یا اړول.

د زړۀ مینه پـــه مشـــال لـــکه پټک ده
چې د ګوئ ځښتن وهله هورته رغښته خوشحال

**رغښتلے**:- (ر + غ + ش + یا خ + ت + لَے)[اپ.مف.مذ.ج: رغښتلي. مؤ:رغښتلې] (۱) رغښتے. رغړېدلے. ګرګاډے شوے. (۲) بازۍ خوړلے. لوټکې خوړلے. بازیګرې خوړلے. یا اړولے.
**رغښتنګ**:- (ر + غ + ش یا خ + تَ + ن + ګ)[ق.حمص]. رغښتنه.
**رغښتنه**:-(ر+غ + ش یا خ + ت + نَ)[اپ.حمص]. (۱) رغښتنه. ګرګاډے.کېدنه. (۲) رغړېدنه. بازۍ یا لوټکی. خوړنه بازیګرې اړونه.
**رغښتونکے**:- ر+غ+ ش یا خ + تو +ن + کے)[اپ.فاع.مذ. دا.ج: رغښتونکي مؤ: رغښتونکې] (۱) رغړېدونکے (۲) بازۍ خوړونکے. لوټکی. کوړونکے. بازیګرې اړؤونکے.
**رغښته**:- (ر + غ + ش یا خ + تَ) [اپ.حمص]: و ـــــ رغښتنه.
**رغښتے**:- (ر+غ + ش یا خ + تے)[اپ.مف.مذ.وا.ج: رغښتي مؤ: رغښتې. و ـــــ رغښتلے.
**رغ کړے**:-(رَ+غ+ک+ړے)[اپ.اس ص. مذ. ج: رغ کړي. مؤ: رغ کړې] (اصل روغ) جوړکړے. تیار کړے. ساز کړے.
**رغلے**:- (ر + غ + لَے)[ق.اس.مذ] نغرے، انغرے د اوسپنې نغرے چې درپېښې ئې وي.
**رغم**:- (رَ+غ+م)[ئ] مجبوری. ناخوښی.,په نا خوښی. په کرکه. په نفرت یاحقارت.
**رغندے**:- (ر+ غَ + ن + دَ ے)[ق.اس.مذ.(مؤ: رغوسه. ج رغوسې] ورغومے.
**رغول**:- (ر+غ + و + ل)[اپ.مص مت) (۱) جوړول. تیارول. (۲) عمارت سازول.تعمیر کول. (۳) ګنډل. (۴) منقش کول. [ق]. (۵) دوه مرورسوه پخلا کول. روغه کول. روغه راوستل. (۶) پیوند کول.
**رغولے**:- (رَ+غَ+ؤ+لَے)[اپ.مف.مذ.ج: رغولي. مؤ: رغولې]. (۱) جوړ کړے.تیار کړے (۲) ګنډلے (۳) کشیده کړے. نقش کړے. (۴) پیوند کړے . (۵) پخلا کړے.
**رغونګ**:- (ر+غَ + ؤ + ن + ګ)[ق.حمص] رغونه.
**رغونه**:- (ر+غَ + ؤ + نَ)[اپ.حمص]. (۱) رغونګ. جوړونه. تیارونه. (۲) ګنډنه. (۳) منقش کونه. کشیده کونه (ق) (۴) پیوند کونه. (۵) پخلا کونه.
**رغوونکے**:-(رَ+غَ +وو+ ن +کے)[اپ.فاع.مذ.ج: رغوونکي. مؤ: رغوؤنکې].
(۱)جوړوونکے. تیارونکے. (۲) ګنډونکے. (۳) نقش یا کشیده کوونکے (ق) (۴) پیوند کوونکے. (۵) پخلا کوؤنکے.
**رغه**:- (رَ + غ)[ق.اس.مؤ] اصل (داغ) راغه. د غره لمن.
**رغے**:- (رَ + غَے)[ق.اس.مذ] کم ژور(ځور) هغه تالے چې ډېر ژورنۀ وي.
**رغے**:- (ر+ غَے)[ق.اس.مذ]سمے. جوړښت. سمون.
**رغئي**:- (ر+غَ + يِ)[ق.اس.مذ]. هغه نور کي چې په دیوال پورې ښتے وي.
**رغئي**:- (رَ+غ + ئِیی)[ق.اس.مذ] په سوال اخستې زمکه. داجارې زمکه.
**رغېدل**:- (رَ + غے+د+ل)[اپ.مص لا (اصل روغ). (۱) سازېدل. جوړېدل.تیارېدل. (۲) د مرض یا ناجوړتیا نه ښه کېدل، صحت موندل. جوړېدل. (۳) ګنډلے کېدل. (۴) منقش کېدل. (۵) پیوند کېدل. (۶) دده مرور سره پخلا کېدل. (۷) د چانه بغېر ګذران کېدل.

دا داغونـــه چـــې خوشـــحال لـــري پـــه زړۀ کښـــې
رغېـــدل بـــه ئـــې پـــه تـــا کېـــږي ســـبحان

**رغېدلے**:- (ر+غ+د+لَے)[اپ.مف.مذ.ج:رغېدلي مؤ:رغېدلې]. (۱) جوړ شوے.ساز شوے. تیار شوے. (۲) د مرض یا نا جوړ تیا نه ښه شوے. (۳) ګنډلے شوے. (۴) منقش شوے (ق) (۵) پیوند شوے. (۶) پخلا شوے.
**رغېدنګ**:- (رَ + غ + د + ن + ګ)[ق.پ.حمص] ر غېد نه.
**رغېدنه**:-(رَ + غ + د + نَ)[اپ.حمص]. (۱) رغېدنګ، روغېدنه، جوړېدنه. تیارېدنه. (۲) ګنډلے کېدنه. (۳) منقش کېدنه. (۴) پیوند کېدنه. (۵) دوه مرور پخلا کېدنه.
**رغېدونکے**:-(ر+غ+دو+ن+کَے)[اپ.مف.مذ.ج:رغېدونکي.مؤ: رغېدونکې]
(۱) روغېدونکے. جوړېدونکے. تیارېدونکے. (۲) ګنډلے کېدونکے. (۳) منقش کېدونکے. (۴) پیوند کېدونکے. (۵) پخلا کېدونکے.
**رغیندن**:- (رَ+ غَي + ن + د + ن)[ق.اس.مذ]. تعلق پریکونه، رغېدن، رغیندن.
ـــــ**کول**:. (اص) تعلق پریکول. رغېدن. رغیندن.
ـــــ **کېدل** (اص) تعلق پریکېدل. رغېدن کېدل.
**رف**:- (ر+ف)[انګ.ص]. ROUGH (۱) ناصفا. ناهموار چې صفا اومهین نۀ وي. زیږ (۲) هغه لیک چې په اول ځل ولیکلے شي چې صحیح اوصفا نۀ وي.
ـــــ **کاپي**:- اص، (۱) هغه نقل چې صفا نۀ وي. (۲) مسوده چې لاصفا کړې شوې نۀ وي. (۳) هغه کاپي چې رف کار په کښې کولے شي. د نا صفا لیک د پاره کاپي.
**رف**:- (ر+ف)[اپ.اس.مـذ]. رپ، مورګـه. مـوره. (ظفر)(اصـلاً د شـونډو پـه مورګه(د ښځې) ښکلولو ته وائي.
**رفاقت**:-(ر+فا+قَ+ت) [ع.اس.مـذ]. ملګرتیـا. دوستي. اشنای. اتفاق. اتحاد. صحبت. رفاقت
ـــــ**پرېښول**:. (اص). ملګرتیا پرېښول دوستي اشناني پرېښول. رفاقت.
ـــــ **کول** :.اص. ملګرتیا کول، دوستي اشنای کول. د لارې مل جوړېدل.
**رفاه**:- (ر+فا+ه)[ع.مؤ] (۱) ښېګړه. نیکي بهبودي. (۲) د ارام ژوند (د ژوند

خوند او لطف)

**رفاه عام یا عامه**:- (ر+فا+ه+عا+م)[فاتر.ص]د خلقو ښېګړه. داولس د ښېګړې کار د خلقو د فائدې کار.

**رفتار**:- (ر+ف+تا+ر)[فا.اس.مذ]. قدم. چال. یون.رفتار.

چې په یو قدم تر عرشه پورې رسي
ما لیدلے دے رفتار د درویشانو رحمٰن بابا

____ **کول**:- اص ،قدم اخستل. تلل. یون کول.

د مستۍ د هوښارۍ یون ئې څرګند دے
په هر چا کښې چې څۀ وي هغه رفتار کا رحمٰن بابا

____ **ګفتار**:-(رفتار+ګ+ف+تا+ر)[فا.اس.مو.] تلۀ او خبرې چاله. روش. چال چلن. کړه وړه. ناسته ولاړه.

**رفت آمد**:- (ر+ف+ت+ا+م+د)[فاتر. مذ]تګ راتګ.تله راتله. امدورفت.

د دنیا چارې فاني دي
رفت آمد ئې په یرغال شي رحمٰن بابا

**رفتن**:- (ر+ف+ت+ن)[ف.حص]. تلل. مزل کول. (عموماً په شعرونو کښې استعمالېږي)

د رفتن د آمدن حساب ئې نشته
لکه بهر چې بهېږي بې پایان رحمٰن بابا

**رفته**:- (رَ+ف+تَه)[فا.ص] تیر شوے. تللے.

زندګي که څوک پوهېږي حضور دم دے
آئنده و رفته کله د چا یاد وي رحمٰن بابا

**رفد**:- (رَ+فَ+د)[ع.مذ] بخښل. مرسته کول.

**رَفرف**:- (ر+ف+ر+ف)[ع.اس.مذ].(۱) یو پلنه طاخچه چې کورني څیزونه په کښې اېښودے شي. (۲) د حضرت اسرافیل علیه السلام د اوسېدو ځاے. (۳) هغه سورلي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم د معراج په شپه پرې سور شوے وۀ.(۴) د یو خاص سورلۍ نوم په کوم چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم د معراج په شپه د براق په ذریعه اسمانونو ته رسېدونه پس سورلي کړې وه.

جبرائیل پاتې په رف رف شو چې ستا پرواز اولګېد
مرحبا مرحبا د عرشه نه آواز اولګېد

**رَف رف**:- (ر+ف+رَ+ف)[ع.اس معرفه] هغه مقام چې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم د معراج په موقعه جبرائیل امین دوړاندې تلونه ایسار شوے وه.

**رفري**:-(ر+ف+رِي)[انګ.اس.مذ.ج. رفریان] هغه سړے چې په څۀ لوبه کښې فیصله کوي. (۲) په څۀ معامله کښې فیصله کوونکے.

**رفس**:- (ر+ف+س)[ع.مذ] په لته وهل. په پښه باندې څۀ څیز خوځول.

**رفض**:-(ر+ف+ص+(ز))[ع.س.مذ]الغ. پرېښودل. سردارپرېښول. د رافضي عقیده یا مذهب.رافضي توب د شیعه ګانو د یوې فرقې مسلک.

**رفع**:-(ر+فَ+ع) یا رَ+ف+ع) [ع.مذ]. (۱) اوچتول، پورته کول. (۲) لرې کول

**رفعت**:- (رَ + ف + عَ + ت)[ع.اِس] اوچتوالے، لوړوالے د مرتبې لوے والے عظمت. شان، ترقي.

**رفع دفع**:- (ر+ فَ(+عَ) (عو. رَ فَ. دَ ف). [ع.کلمه]. رفع. پورته کول. ربه رپه. ختم. خلاص. فیصله.

که تر سر ئې صدقه کړې
رفع دفع که بلا رحمٰن بابا

____ **کول**: اص. ختمول. فیصله کول. خلاصول. ربه دپه کول. رفعه دفع.

____ **کېدل** (:- اِص) ختمېدل. خلاصېدل، د چانه یا د څۀ خبرې نه خلاصې

مونډل۔ جګړه ختمېدل.

____ **یدین**:- (رفع + يَ + دَ ے + ن)[ع.اس] رفع: پورته کول. یدین: دید جمع ده. په معنې د لاس. دواړه لاسونه اوچتول. په مانځه کښې په هر تکبیر کښې دواړه لاسونه تر غوږونو یا تر مټو اوچتول (اهل حدیث فرقه داسې کوي).

**رفق**:- (ر+ ف + ق) [ع. ص] پوستوالے. نرمي. مهرباني. عنایت.

**رفل**:- (ر+ فَ + ل)[پ.انګ: رائفل. اس. مذ] انګریزے ګولیدار ټوپک. یونلیز ګولیدار ټوپک.

**رفو**:-(رَ+فو)[ع.مذ]مرمت. بیزنه. داسې مرمت کول چې په سوري یا شلیدلي ځاے کښې دتنستې بورۍ په شان تارونه تیر کړے شي. مرمت ګنډل.رفو.

چې رفو کړې د حمید د خاطر زخم
مونډۀ نۀ شي یو دلدار هسې دلدوز

____ **کول**: اص. مرمت کول. شلیدلے ځاے په تارونو تیرولو یا بیز لوبندول. سورے په تارونو بندول.پټول د مرمت د پاره ګنډل.رفو.

که سوځن د بڼو راوړې تار د زلفو
د رحمٰن د زړګي زخم به رفو کړې

چې رفو له په د حمید د خاطر زخم
مونډۀ نۀ شي یو دلدار هسې دلدوز

____ **کېدل**: اص. مرمت کېدل. بیزلے کېدل. سورے په تارنو بندېدل. شلیدلے ځاے ګنډلے کېدل.

____ **ګر**: -(رفو+ګ+ر)[فا.اس ص.مذ]رفو کوونکے،بیزونکے،مرمت کوونکے.

____ **ګري**:-(رفو+ګ+رِي)[پ.اس.مؤ]درفو کولو کار یا هنر.درفو کولو پیشه یا کسب. د شلیدلي څیزونو د ګنډلو یا پیوندولو کار.

**رفیده**:-(ر+فِي+د) [ف.اس.مؤ]هغه ګدۍ چې د چیړو وغېره نه ډکه وي اوپه هغې باندې نانبایان په تنور کښې پیړۍ پورې کوي.

**رفیع**:- (رَ+فِي+ ع)[ع.ص.مذ]اوچت، لوړ. هک. جګ. اعلی۔

که توبه اوکړې له بدو توبه ګار شې
په جنت کښې په مقام درکه ارفع خواجه محمد بنګش

____ **الشان**:- (ر+ فِي+ع +ش+شا+ ن)[ع.ص] د اوچت شان. درجې. مرتبې یا د ځاے خاوند.دلوئې او اوچتې مرتبې خاوند.اوچت او لوړ حالت لرونکے(عبادت وغېره).

**رفیق**:-(ر+فِي+ ق)[ع.اس.مذ.ج: رفیقان] ملګرے.مل.په سفر کښې شریک. د لارې مل، مددګار، خواخوږې. مصاحب. د یو ځاے ناستې پاستې ملګرے. دوست.یار. اشنا. په کار کښې شریک.

او رفیق مې مصطفٰی شي
ورسره شي چار یاران

**رق**:-(ر+ ق)ایغ نبغ (ظفر)

**رِق**:- (ر+ ق) [ع.مذ]. (۱) مریے. غلام. (۲) غلامي. مریتوب.

**رقاب**:-(ر+ق+قا+ب)[ع. اس.ج.وا.رقبه](۱) غاړې.څټونه (۲) مریان. غلامان

**رقابت**:-(ر+قا+ب+تَ) [ع.اِس.مؤ]خپلو کښې کست (قصد)کینه.بغض، داسې د شمني چې د همسرۍ یا د یو کسب په سبب په خپلو کښې وي. په مینه کښې شریک پیدا کېدل مخالفت.کست.کینه.

په دې زمکه اودربدلو په هر لور مخالفت ؤ
چا ټوکلو چا کنځلو دښمنۍ وې رقابت

____ **کول**:.اص.کست.کینه یا بغض.کول. همسري کول. مخالفت کول. سیالي کول.

ـــــ **کېدل**: اص. کست. کینه یا بغض کېدل. د زړورو هتیانو په مینځ کښې بغض او کینه کېدل. په مینه کښې شریک پیدا کېدل سیالي کېدل.

ـــــ **اور**: - هغه تاو چې د رقابت په سبب وي. د سیالۍ دښمني.

**رقاد**:-(ر+قا+د) [ع.مذ] خوب. اوده کېدل. خصوصاً د شپې اوږد خوب (یو تلفظ کښې رقاب هم دے.

**رقاص**:-(ر+ق+قا+ص)[ع.اس.فاع.مذ.ج:رقاص.اف.مؤ:رقاصه.ج:رقاصې]. (۱) رقص کوونکے. ګډېدونکے(۲) پخوانو ګړیالونو کښې تار سره زوړند وزن داره څیز چې ښي او ګڅ طرف ته حرکت کوي اوپه دې باندې ګړیال چلیږي. (اردو لټکن)

یو راز دے په دا کار کښې که ته ئې بنۀ فهم پرې اوکړې
چې شمع ســر جنیــانـــــه پــــروانـه ورته رقاص خوشحال

**رقبه**:-(ر+ق+ب)[ع.اس.مؤ.ج: رقبې](۱) احاطه. راګیره زمکه. (۲) د کلي د شاملات زمکه. (۳) د زمکې یا دهوار څیز دا وږدوالي او پلن والي حاصل ضرب.

رقبه هـــــر رقیب د چغـــل ژبـــه
چې دا دواړه پرې کا هسې ادیب نشته علي خان

**رقبه**:- (ر+ قَ + بَ+ه)[ع: اسم. مو. ج: رقبې]. مرۍ، ګردن. څټ. غاړه.

ـــــ **رایستل**: -اص،د حساب په روسره د زمکې یا د څۀ داسې بل څیز رقبه معلومول. رقبه معلومول.

ـــــ **معلومول**:- اص،وـــــ رقبه رایستل. رقبه معلومول.

**دزمکې**ـــــ:- اص .د زمکې د اوږدوالي او پلن والي یو ځاے حساب.

**رقت**:-(ر+ ق + قَ + ت)[ع.اس.مذ]نرم والے.رحم. مهرباني . مینه.زړۀ سوے.

ـــــ **راتلل**: اص.رقت کېدل. زړۀنرے کېدل. زړۀ راډکېدل، ژړا راتلل ژړل.

ـــــ **کېدل**.- اص.و ـــــ رقت راتلل.

**رقد**:-(ر+قَ+د)یا(ر+ ق + د)[ع. مذ](۱) اودۀ کېدل. خوب کول. (۲) خوب لېدل.

**رقص**:- (ر+ ق + ص)[ع.اس .مذ.ج: رقصونه] ګډا ، نڅا ، مجره.

ـــــ **کول**: – اص: ګډا. نڅا کول. ګډېدل

هم نغمې کاندي هم رقص که هم خاندي
د رحمٰن پــــه شعر تــــرکې د بــاګرام رحمٰن بابا

**رقص و سرود**:- (رقص + سو + رو + و+د)[اس مر. مذ]ګډا اوسندرې. ټنګ ټکور او ګډا نڅا. ګډا او ورسره باجې اوسندرې.

**رقعه**:-(ر+ق+عَه) (ر+ق+ ۀ) [ع.اس.مؤ.ج: رقعې].(۱) ټوټه. ټکړه. پوزه. وړوکے خط. (۲) د سوال جواب مختصر غونډې عبارت.(۳) په تقریب کښې شاملولو د پاره د بلنې کاغذ.د عوت نامه.

ـــــ **استول**:- اص(۱) وړوکے خط لېږل. مختصره چیټۍ لېږل.(۲) په څۀ تقریب کښې د شاملولو دپاره وړوکې شان دعوت نامه استول.

ـــــ **راتلل**:-اص(۱) په څۀ تقریب کښې د شاملېدو د پاره بلنه راتلل. دعوت نامه راتلل. (۲) مختصره چېټۍ راتلل.

ـــــ**لېږل**:- اص-و ـــــ رقعه استول.

**رقم**:- (ر+ ق+م)[ ع.اس. مذ. ج: رقمونه](۱) مال دولت. پیسې (۲) لیک. حرف. خط (۳) طور.طریقه. (۴) نخښه. نشان.

یــو آدم دے چــې څــو رنګــه جلـوه کــه
یــو رقــم دے کلــه زرد شـي کلــه زبــر شـي

چې په مخ باندې د اوښکو یو رقم وي
عښ د تـــور دلـــه پرهره سره سم وي رحمٰن بابا

**رقم**:- (رایستل:- اصو(۱) پیسې ټکې رایستل. (۲) د ډاکخانې یا بینک نه د خپل حساب نه پیسې راوباسل.د خپله جیبه پیسې رایستل.

ـــــ **کول**:- اص(۱) لیکل. (۲) نخښه کول.

بل نشان به ئې همره له زړۀ نه یوسي
یو د خپلې مینې نقش به پرې رقم کا خوشحال

ـــــ **کېدل**:-اص:لیکلےکېدل.په لیک کښې راتلل.(۲)نخښه لګېدل.نقش کېدل.

د سـعید پــه زړۀ د یــار څهــره رقــم شــوه
نــور ئــې واړه کــوز و پــاس لــه زړۀ زائــیلے

ـــــ**لګول**:- اص:پیسې لګول. خرڅ کول.

ـــــ**ور کول**:-اص،چاته پیسې ټکې ورکول.

**رقوم**:- (ر+قو+م) [ع. اس . ج]د رقم جمع ده. و ـــــ رقم.

**رقومات**:- د رقم جمع الجمع ده و ـــــ رقم .

**رقیب**:-(ر+ قي+ ب) [ ع. اس.مذ.ج: رقیبان]اصلاً حفاظت کوونکے. څوکۍ کونکے) مخالف. حریف. څوک چې بل سره رقابت لري. رقابت کوونکے.

دا دې ما د بخت اثر نۀ دے نو څۀ دي
لــه رقیبه چې شکوه پـــه دا غابت کا خوشحال

ـــــ **کېدل**: اص:مخالف کېدل. حریف کېدل.

چې خپل یار د چا رقیب شي دلیل دا دے
لکه څــوک چې په وطن کښې شي غریب رحمٰن بابا

**رقیق**:- (ر+ قي + ق)[ع.ص.مذ]د اوبو په شان نرم. مکه داوبو نرے، ملائم. نرم.

ـــــ **القلب**:- (رَ + قي + ق + ل + قَ + ل + ب)[ع.ص.مذ]. چې زړۀ ئې نرم وي. د نرې زړۀ خاوند. رحمدل.ترس کوونکے، چې په نۀ څۀ خبره ژاړي.

**رقیمه**:-(ر+قي+مَ) [ع. ص.مؤ. ج: رقیمې] (د رقیم مؤنث). لیک . تحریر.لیکلے شوے څیز

**رک**:(ر+ک) [اس.مذ.ج:رکونه] (اصل:رکه)د وښو د پاره محفوظ شوےمیدان. ورشو.

**رک**:- (ر + ک)څرګند. صفا. واضح. خالص

**رکاب**:- (ر+کا+ب)[ع.اس.مذ. ج: رکابونه] رکیب. داوسپنې یو درې ګوټه شان حلقه یا کنډه چې داس د زین نه اخوادیخوا اویزانده وي چې په اس سوربرې نو اول په دې حلقه کښې یوه پښه دننه کړي اوبله پښه داس د پاسه اړوي، په اس کښېني او بیا بله پښه بل خواپه حلقه کښې دننه باسي. (۲) هغه لفظ چې د کتاب د هر یو یومخ دلاندې ښي طرف ته لیکلے کېده. (پخوا په کتابونو صفحې نۀ لیکلے کېدے، رکاب به لیکلے کېده)

زۀ ددې دنیا نــه تلونے په شتاب یم
لکه پاڼــه د خزان پښه په رکاب یم رحمٰن بابا

ـــــ **کښې**: اَص. (۱) د رکیب ملګرے. د سورلۍ ملګرے . دلازې ملګرے (۲) (پهـــ) سور سره پلے تلل. نوکر. ملازم په اردل کښې.

ـــــ **پښه په رکاب**: اص ،په رکاب کښې پښه دننه کړې. بالکل تیار .

هسې ځان ګڼــه روان له دې جهانه
لکه اوښکې د ښــو پښه په رکاب رحمٰن بابا

ـــــ **په رکاب پښه ایښودل**:-اص. په رکاب کښې پښه د ننه کول. سفر د پاره تیارېدل

**رکابدار**:-(رکاب+دا+ر)[فاتر.اس ص. مذ](۱) د مالک د سورېدو په وخت رکاب نیوونکے.نوکر (۲) هغه نوکر چې د امیرانو د اس سورلي سره سره منډې وهي.

**رکابي**:-(ر+کا+بي)[ف.اس.مؤ.ج:رکابیانې]رکیبۍ.تالۍ.تباخ.دچیني خاورو یا د بل یو د هات نه جوړه شوې رکیبۍ.

____ **مذهب**:- اِص.زمانه ساز. ابن الوقت. خوشامندګر. څوک چې خپل څهٔ خاص اصول نه لري. کله د يو ټولي سره شي کله د بل. تالي څټ. خود مطلبه رکابي.

____ **په شان مخ**:-اِص.د رکيبي. غوندې چپليت او پلن مخ د تباخ په شان مخ

**رکات**:- (ر+کا+ ت) [پ.ع. رکعت. اَس. مذ. ج. رکاتونه] و ____ رکعت.

**رکاکت**:-(ر+کا+ک+ت) [ع.اِس.مذ] سپکوالے.رذالت. د بې عزتي. کار. کمينه توب. کمزورتيا.

**رکبنه**:-(ر+ک+ب+نَ) [ب. (زطفن).اِس.مؤ](۱) نخښنه. علامه. (۲) په غرهٔ کښې نرے لاس.

**رکبه**:- (ر+ ک+ بَ) [ن. ص]د ورشو څوکېدار

**رک پک**:- (ر+ک+پَ+ک) [ق.ص]، روک پوک، بالکل واضح ، صاف.

**رکړه**:-(ر+ک+ړ) [ق.پ.ص] دورور د پاره د مينې نوم.

**رکسين**:-(ر+ک+س+ي+ن) (ربګزين) د څرمنې په شان نرۍ کپړه چې د کتابونو د جلد و نو يا د ګډوجوړولو د پاره پکارېږي.

**رکشــه**:- (رَ+ک+ شَ) [پ.انګ. رکشــا.اِس. مـؤ. ج. رکشــې]اورکوټې غونـدې ګاډے چې په کښې دوه تنه کيناستے شي. دا دوه قسمه وي يو چې په بائيسکل پسې ئې راکاږي.په ځينو ځايونو کښې ئې سړي راکاږي اوبل ورکوټے موټرګے چې درې پائې لري.

**رکښ**:- (رَ+ک + ش يا خ) [ق.اِس. مذ. ج. رکښونه] خط نخښنه. علامه

**رکښه**:- (رَ+ک + ش يا خ) [ق.اِس.مؤ]. (۱) رکښ. خط نخښنه. علامه. (۲) په غره وغېره کښې نرۍ تنګه لار ګې. (۳) د زمکې حصه يا برخه.

**رکعت**:-(ر+ک+ع+ ت)[ع.اِس.مذ.ج: رکعتونه] (رعو: رکات) رکات. دلمونځ يوه حصه چې په کښې د اودرېدو نه ترناستې پورې يو رکوع او دوه سجدې راشي.

**رکن**:- (ر+ ک+ن) [ع.اِس.مذ.ج: رکنونه] (۱) ستن. ضروري حصه. (۲) د يوخاص ټولي يا انجمن يو غړے. (۳) ګټ. زاويه. بهرنۍ حصه.

____ **الدين**:- اِص.د دين ستن. يو لوے عالم يا ملا.

____ **مياني**:- (م+ي+ا.ن ي)د کعبې شريفې په رکنونو کښې يو رکن (ګټ).

____ **د اسلام**:- اِص،د اسلام د مخې يو فرض يا ډېر ضروري څيز .لکه د اسلام پنځه رکنونه دي. توحيد. نمونځ. روژه (روجه) زکواة. حج.

**رکو**:- (ر+ کو يا کو) [پ.ع: رکوع. اس. مذ] و ____ رکوع.

**رکوتر**:-(ر+کو+ت+ر) [ق.اِس.مذ.ج: رکوترونه]د بوسو ټکولو پلن لرګے. سوټے- څوبارے.

**رکوع**:- (ر + کو + ع يا ر + کو ) [ع.اس. مذ. مؤ. ج: رکوع ګان. رکوع ګانې] رکوع. ټيټېدل.د اصطلاح په معنې په نمانځه کښې په زنګونونو دواړه لاس کېښودل او ټيټېدل.

آسمان طوره په رکوع شه

زمين طـوره پـه سجود رحمٰن بابا

**رکيب**:-(ر+کے+ب) [پ.فا: رکاب. اِس. مذ ج: رکيبونه](۱) درکاب بدل شکل دے چې په شعرونو کښې د ضرورت شعري دپاره استعمالېږي . (۲) اصل هغه سړے چې بل سره په سورلۍ باندې سور وي. دويم سوار.

**رکيبي**:- (ر+کے+بئي) [پ.فا: رکابي. اِس. مؤ]د واحد او جمع دواړه دپارهراځي. ځيني خلق د جمعې د پاره رکيبيانې هم وائي. وړوکے تالے. رکابي.

**رکيک**:-(ر+کي+ ک) [ع.ص]. (۱) نرے، نازک. (۲) پک.ادنیٰ اوبه چې ډېرې غرقې نهٔ وي.

**رګ**:-(ر+ګ) [پ.اِس. مذ.ج: رګونه]. (۱) دوينې نالۍ. د وجود هغه نالۍ چې په کښې وينه بهېږي اوګردش کوي. (۲) د پاڼې يا دګل نرۍ ريشه. (۳) د سترګې په سپين کښې نرۍ سرې سرې کرښې. (۴) په کاڼي کښې رنګ کرښه. (۵) اصل ذات. نسل. رشته. (۶) اثر. بدعادت. بد خوي.

____ **ازادېدل**:-اِص. د رګ نه ډېره وينه تلل رګ اوپله: (اِص) اصل. نسل. رګ و ريشه (۲) خوي بوي.

____ **اودرېدل**:- اِص،رګ پړسېدل. د پړسوب په وجه درګ راپورته کېدل.

____ **اوړېدل**:- اِص د رګ اوښتل رګ بې ځايه کېدل.

____ **پالل**:- اِص.رشته پالل خپلولي قائمه ساتل.د خپل اصل نسل د خلقوخيال ساتل. درشته داري محافظ کېدل.

____ **پړسېدل**:- اِص، و ____ رګ اودرېدل.

____ **پله معلومېدل**:- اِص ،د رګو نو پلونه خبرېدل. د اصل نسل نه خبرېدل.د خوی بوي او عادت خصلت نه خبردار کېدل.

____ **ختل**:– اِص (۱) رګ بې ځايه کېدل. رګ د پاسه د رګ ختل. (۲) ضد کول. ورانې کول.

____ **راپړسېدل**:-اِص(۱) په رګ کښې پړسوب پېدا کېدل. رګ راڅرګندېدل (۲) د څهٔ کار د پاره د زړه خواهش راپورته کېدل.

____ **راڅرګندېدل**:- اِص. و ____ رګ راپړسېدل.

____ **راکښل**:- اِص.د خپل رشته دار بې ځايه مرسته کول. متل. رګه رګه رامے کاږه

____ **ريشه**:- اِص: دوينې شريکوالے. خپلولي. رشته.

____ **قابو کېدل**:- اِص. رګ په قبضه کښې راتلل. په قابو کښې کېدل چاته د چا کاربندېدل. په چاباندې د چاد مخې زور راتلل.

____ **کوزېدل**:- اِص د فق مرض کېدل. د کلمې راکوزېدل. کلمه پړسېدل او بهرته راوتل.

____ **لوئېدل**:- اِص (۱) د رګ ټوپونه وهل. د رګ حرکت کول.(۲) د کېدونکے خبرې يا کارنه داول نه خبرېدل.

____ **مړکېدل**:- اِص.(۱) په رګ کښې طاقت نه پېدا کېدل. نا مړد کېدل. (۲) د جوش جذبې او ولولې نهٔ پېدا کېدل.

____ **موندل**:- اِص:اصل خبره معلومېدل. په خبره سر کېدل.

____ **وهل**:- اِص:(۱) د رګ نه وينه ايستل. فصد اخيستل.(۲) ټيکه لګول. د څهٔ مرض دارو د ستن په ذريعه په بدن کښې داخلول. ويکسينېشن.

**په ____ رګ کښې**:- اِص.په رګونو کښې. په خټه کښې. په خمير يا فطرت کښې. په ټول وجود کښې.

**په ____ رګ کښې کوټلے کېدل**:- اِص.په چا کښې ديو صفت پوره پوره او کامل موندلے کېدل.

____ **په ____ ګوتې کيښودل**:- نبض معلومول.

چې په رګن مې ګوتې کېږدي رنګ مې زېر شي

طبيبان مې بـــه پـــه څـــو د رنځ علاج کا خوشحال

**په رګونو او پلو کښې اچولے کېدل**:اِص.په خټه يا خمبير کښې داخلېدل.په مزاج او طبيعت کښې اثر کول.

**په رګونو او پلو کښې ننوتل**: (اِص) دوجود په يو يورګ اوريشه کښې اثر کول. د خمبير يو جز و ګرځېدل. په خمبير کښې اثر کول.

**په رګونو کښې وينه زغلېدل**:- اِص.په رګونو کښې وينه ګرځېدل. په رګونو کښې د وينې تيزۍ سره حرکت کول.د ژوند او طاقت علامې څرګندېدل.

**په رګونو کښې وينه ګرځېدل**: اِص .په رګونو کښې وينه زغلېدل.

**د رګ ټوپونه د هل**:- اِص .و ____ رګ لوېدل (۱)

**د رګ خوله ازادېدل**:- اِص .د فصد يا رګ وهلو په وخت د رګ نه ډېره زياته وينه

تلل. د وينې غټه داره د رګ نه رابهېدل.

**د رګ رګ نه واقف کېدل**: اص .د يو يو رګ نه يا دبيل بيل رګ نه واقف کېدل. پوره پوره خبر داري لرل. د چا د طبعيت نه مکمل طور سره واقف کېدل.

**رګونه راوتل:** -اص .رګونه د څرمنې د پاسه ښکاره کېدل. ډېره مانده کېدل.

**رګونه لټول:** - اص .په څهٔ کار کښې ډېرې ګوتې وهل. په څهٔ کار کښې چينجي لټول

**رګدار: –** (رَ + ګ + دا + ر) [ف.اِس ص .مذ .(مؤ: رګداره. ج: رګدارې)]. (۱) رګونه لوونکے چې په کښې رګونه وي. ريشه دار. (۲) چې په کښې ناکاره او بد معا شونه وي.

**رګړے**: (ر + ګ + ړ + ے)[ف.اِس.مذ.ج: رګړدي. مؤ. رګړې]. هغه ماشوم چې د تې نه پريکړے شوے وي.

**رګ وهونکے**:-(ر+ګ+و+ هو+ن+کَے) [پ.اِس فاع. مذ. ج: رګ وهونکي]. (۱) ټيکه لګوونکے ډاکټر. ويکسي نيټر.(۲) رګ وهونې. د رګ نه وينه ايستونکے فصد اخيستونکے. جراح.

___**وهونے**:- (ر + ګَ + وَ + هو + نَے) [پ.اِس فاع. مذ. ج: رګ وهوني] و ___ رګ وهونکے.

___**ويد**: –(ر+ګ+وَ+ ي+ د) د هندوانو مذهبي څلورو ويدونو کښې اولنے کتاب چې د پښتنو په دې زمکه کښې ليکلے شوے وۀ.

**رګه: –** (ر + ګ) [ق.اِس. مو. ج: رګې] .(۱) لګې . رخه . لاره. پټانړ (۲) د کرښې نخښه . ليکه. رګه.

___ **پسې اخيستل**:- اِص .په لاره ورپسې تلل. د پښو په نخښه ورپسې تلل. دچاپه منړ تلل. د چا منړه اخستل.

**رګي**:- (ر + ګَ + يَي) [پ.اِس.مؤ]. و ___ رګه.

**رګے** :- (رَ + ګَے) [اس. منو] درک تعلق. خپلولي. رشته.

___ **پالل**:- اِص. رشته پالل.د خپلولي خيال ساتل. رګے چلول. رګے ورسره کول.

___**چلول**:- اِص. و ___ رګے پالل.

___**ورسره کول**: اِص و ___ رګے پالل.

**رګي**:- (رَ + ګي) [پ.ص](۱) رګ والا (۲) غوښه چې په کښې ډېرې ريشې، رګونه اوپلي وي، رګيز.(۳) رګ لرونکے. وران کارے. بد ذات، فسادي.

**رګي**:- (ر+ګي) [ق: پ. اِس ص ]هغه څوک چې د ډېر مشقت په وجه ئې شکل مړاوے او مانده شوے وي. هغه څوک چې رګونه ئې راوتي .

___ **کول**:- اص. محنت مشقت سره مانده کول.

___ **کېدل**: - اص. محنت مشقت سره ډېر مانده کېدل.

**رګيز: –** (رَ + ګَي + ز) [پ.اِس ص. مذ] و ___ رګي.

**رم**:- (ر+م) [ف.اِس.مذ] .(۱) تيښتنه. منډه. ترپکه (۲) ترهه. ويره. (۳) تور (ظفر) رم ___ کول.تښتېدل. تېښتنه کول.

**رم:** - (ر + م) [انګ *(REAM)* اس. مذ. ج: رمونډ]ريم د کاغذو نو د شلو دستو يو بنډل. په يوه دسته کښې څلير يشت تختې د کاغذ وي خو په رم کښې د څلورو سوواتيا او نه علاوه پنځه سوه تختې کاغذ هم وي.

**رماح**:-(ر+ما+ح) [ع.اِس.مذ]، [دريم جمع ده] .(۱)نيزې(۲)سانګې(ظفر).

**رماد**:- (رَ + ما + د) [ع. اِس. مذ]. ايره. خاکستر .

**رمال**:- (ر+م+يا+ل)درمل علم لرونکے. هغه سړے چې در مل په علم دراتلووخت يا د قيمت حال معلوموي. (و ___ رمل)

چې د خدا ے رضا شي پېښه
رمــل پــاتې د رمـال شي رحمٰن بابا

**رمان**:- (ر + م + يا + ن) [ع. اِس. مذ]. انار. نرګوسې.

**رمباړه**:- (ر+م+با+ړَ) [پ.اِس.مؤ. ج: رمباړې](۱) د غوايهٔ يا د ګډ اواز ـ ډرکا. (۲) ډېر تيز او اوچت اواز.

**رمباړې وهل**:- اص .(۱) د غوايه يا د ګډو وغېره اواز کول. د ګډو بزو بنګېدل. (۲) (طنزاً) چغې وهل.

**رمبکتيا**:-(ر+م + ب + ک + ت + يا) [ق: اس. مؤ]. اربکتيا. پوليسي انضباط.

**رمبکمشر**:- (رَ + م + بَ + ک + م + ش + ر) [ق.پ.اِس.مذ]. سردار. ريډر پوليس افسر.

**رمبسه**:- (رَ + م + ب + سَ+ه) [ق. پ. اِس. مؤ]. رمبکه. سويه. هغه فصل چې ايله سونې رايستې وي.

**رمبکه**:- (ر+ م + ب + کَ) [ق.اِس.مؤ]. و ___ رمبسه .

**رمبکے**:- (رَ + م + ب + کَے) [ق.اِس.مذ.ج: رمبکي] (۱) د غوايه ډکار. (۲)هغه سړے چې ديو کلي اولس د طرف نه د اهم کارونو د مشورې او جمع اورې دپاره چونړ کړے شوے وي. پوليس اهلکار.

**رمبوسے**:- (ر+م+ بو + سے) [ق. پ. اِس. مذ. مؤ: رمبوسې] توره هوسى.راموسى.

**رمبه**:- (ر+م+ بَ+ه) [پ.اِس.مؤ: ج: رمبې] د او سپنې جوړه اله چې سورے پرې کوي.برمه.

**رمبے**:- (رَ+م + بَے) [پ.اِس. مذ. ج. رمبى](۱) د ګوډ کولو د پاره داوسپنې جوړه اله (۲) د موچې يا چميار رمبے چې څرمن پرې پريکوي اوصفا کوي. (۳) د لرګي جوړه اله چې د ګوډي جوړولو په وخت په ټينګ شربت کښې ئې وهي.

___ **وهل**:-اص.(۱) په زمکه کښې ګوډ کول. (۲) څرمن په رمبي صفا کول. (۳) د ګوړې ټينګ شربت په رمبي اړول رااړول يا راجمع کول.

**رمټ**:- (ر+م + ټ) [پ.اِس. مذ] دا ټکے "روغ" سره يو ځاے استعمالېږي. لکه روغ رمټ، جګ جوړ، صحيح سلامت بنهٔ روغ.

**رمح**:- (رَ + م + ح يا رَ + مّ + ح) [ع.اِس.مذ]. نيزه. بله.

**رمد**:- (رَ + م + د) [ع + اِس + مذ] يو بيماري چې سترګې په کښې سرې وي. ليچ. دسترګو خوږ.

**رمز**:-(ر+م+ز) [ع.اِس.مذ.ج: رمزونه](۱) اشاره (که د مخ، سترګو،شونډه. د وروځو يا سترګو دي يا که په بل شان وي) (۲) د راز ټکے. پيچداره خبره. پټه خبره.

**د ___ خبرې**:- اِص. (۱) په اشارو کنايو خبرې.(۲) درازش خبرې. پټې خبرې (۳) د طنز خبرې.

___ **شناس**:(رمز+ش+نا+س) [فاتر. اِس ص. مذ]په اشارو کنايو رسېدونکے. پوهېدونکے.

**رمص**:- (رَ + مَ + ص) [ع.مذ]. چخړې. چوخړې. د سترګو خيرے.

**رمضان**: - (ر+م+ضا + (ذ) ن [ع.اِس.مذ] د اسلامي کال نهمه مياشته. د روژو مياشت

هم صائم د رمضان وي
هــم زکـــوٰة کاندي ادا رحمٰن بابا

**رمضاني**:(ر+م+ ضا+ني) [اص.مذ]. (۱) د روژو د مياشت پېدا. چې د رمضان په مياشت کښې پېدا شوے وي.(۲) (طنزاً) څوک په د روزۍ تنګ وي او خوراک ته څهٔ مومي. قحط وهلے. نهر نهور.

**رمق**:- (رَ + م + ق) [ع.اِس. مذ]. (۱) اخري ساه. د ژوند ډېره لږه علامه (۲) ايله غوندې. پوټې غوندې. لږلږ. ايله شان. يوه ذره. يوه خاشه.

يــو رمــق دې راتــه پــاتې پــه فــراق کښــې
چــې پــه مــرګ لــه مــا جـدا شـول بنـهٔ يـاران

**رمل**:-(رَ+مَ+ ل) [ع.اس.مذ]. د ترويت يو علم چې د کربنو، ټکو او هندسو په ذريعه د غيب خبرې او د بنياد م د قسمت حال بيانوي. نجوم. جوتش.

چې د خداے رضا شي پېښېږي
رمـل پــاتې د رمال شي رحمٰن بابا

**رمنډ**:- (رَ + مَ + ن + ډ) [پ.ص.مذ] بربنډ. لغړ.

**رموز**:- (رَ + مو + ز)اصلاً د رمز جمع ده. په پښتو کښې د واحد په طورهم استعمالېږي. اشاره. رميز. چل.راز.

په رموز د عاشقانو عاشقان پوهېږي بس
پـه طلب د طالبانو طالبان پـوهېږي بس خوشحال

**په ــــ پو هېدل**:- اص.په اشاره پوهېدل.

د صحبت په رموز پوهه زړهٔ ئې خالص مګژوره
کم خوراکه کوش پوشاکه ،همېشه ناسته دلته خوشحال

**رمول**:- (ر+مَ+ وُ+ل) [ق. مص مت](۱) د څر دپاره د ګډو بزو رمه يا کنډک بيول (بوتلل). (۲) ويرول. ترهول.

**رمولے**:- (ر+م+ و+ لَے) [ق: ف . مذ. ج: رمولي مؤ: رمولې]. (۱) ګډه بزه د څرد پاره بيرلے (بوتلے) (۲) ويرولے ـ تر هولے.

**رمونګ**:- (ر + مَ + ؤ + ن ګ) [ق: په. حمص]: رمونه.

**رمونه**:- (رَ + مَ + ؤ + نَ) [ق.پ.حمص](۱) رمونګ. ګډې بزې څر دپاره بهر بيونه. ترهونه.

**رمروؤنکے**:(ر+مَ+وو+ن+کَے)[ق:پ.فاع.مذ.ج:رموؤنکي.مؤ:رموؤنکې](۱)ګډې بزې څروونکے. څر دپاره بيوونکے (بوتلونکے) شپون. (۲) ويروونکے. ترهوونکے.

**رمه**:- (ر+م+ه) [پ. اس. مؤ] زوه. مزمه. سلبنبداره شان ماده چې د پيچش په وخت د بولو سره راوځي. رمې.

**رمه**:- (ر+م+ه) [پ.اس.مؤ: ج: رمې] (۱) د ګډو بزو کنډک. ګله (۲) ګڼه ګوڼه. ټولے. جماعت.

**ــــ وال**:- (رَ + مَ + وا + ل) [پ.اس ص. مذ].(۱) درمې خاوند. (۲) هغه سړےچې د ګډو بزو رمه څر له بوځي.

**رمي**:- (رَ + مَ + ئي) [پ.ص.مؤ]. رمې. دا ټکے د روغه سره يو ځاے وئيلے شي.لکه روغه رمې. روغه رمته. لکه ادم خان په بيلتون کښې درخانۍ وائي-

په آدم خان پسې بـه ومـرم تـر ګرمـۍ
لــه کــوره ددغــه رســي راغلــم

**رمي**:-(ر+م+يَ) [ع.اس ص. مذ]لغ: څهٔ شے غورځول. ويشتل. په اټکل ګذارکول. اص. په جمع کښې د حاجيانو په منٰی کښې نرې نرې ګټګې ويشتل.

**رمے**:- (رَ + مے) [ق: پ. اس. مذ] و ـــــ رمې.

**رمے**:- (ر + مے) [ق: پ. اس.مذ]. پيچش. د وينو بولې يا دست.

**رمے**:- (رَ + مے) [ق: پ. کلمه. مذ]مؤ: رمې. روغ رمټ. جک جوړ.

**رميا**:- (رَ + م + يا) [پ (ظفر). اس. مذ]شپون.

**رمې تون**:- (ر + مې+ تو + ن) [ق: اس.مذ]شفا خانه. ددارو درملو ځاے.

**رمېدل**:- (ر+مې+ د + ل) [ق: پ. مص لا]د ګډو بزو څرېدل. د ګډو بزوبهر د څر دپاره بيولے کېدل.

**رمېدلے**:-(ر+مې+د+لَے) [ق: پ. مف. مذ. ج: رمېدلي. مؤ. رمېدلې] څرېدلے.بهر ورشوته بوتللے شوے.

**رمېدنګ**:- (ر+مې +د+ن + ګ) [ق. حمص] رمېدنه. رمېدل.

**رمېدنه**:- (رَ+ مې + د+ ن+ه) [ق.حمص] رمېدنګ. رمېدل. څرېدنه.

**رمېدونکے**:(ر+مې+دو+ن+کَے)[ق.پ.مف.مذ.ج.رمېدونکي.مؤ:رمېدونکې] څرېدونکے.

**رمېده**:- (رَ+ مى + دَ) [ف.اس ف. کېدل. تښتېدل. منډه وهل. زغلېدل]

**رميز**:- (رَ + مي + ز) [ف: رموز. اس.مذ] (د رموز ليجه) و ـــــ رموز.

**رميم**:- (ر+ مي + م) [ع.ص.مذ]. خوړلے شوے. وروستو شوے.

**رميي**:- (ر+م+ ئيى) [ق: پ. ص]هغه ګډه يا بزه چې رمې سره ځي او څري.

**رن**:- (ر+ن) [انګ. *Run* : ج دنز]لفظي: منډه. د کرکټ په لوبه کښې د وکټو تر مېنځه منډه.

**رن وے**:-(رَ+ن+وَ+ے) [انګ. اسم. مذکر]د هواي جهازونو دختو او کوزېدودپاره لوے پوخ سړک.

**رنتبول**:-(ر+ن+ت+بو+ل) [پ.اس. معرفه]ر نتبهور. ر نتهمبور. د هندوستان په جے پور رياست کښې يو ځاے دے د کوم په کټ (قلا) کښې چې خوشحال خان قريباً دوه نيم کاله قېد وهٔ.

خداے چې تار په تار ياران بيا سره ټول کا
تــورې خــاورې بـــه پـه سر رتبنول کا خوشحال

**رنتبهور**:- (ر+ن+تَ+ بو+ر) [ه. اس معرفه]. و ـــــ رنبتول.

جهــان واړه کــور د عشـــق و محبـــت دے
پــه خوشــحال بانــدې بانــډه شــو رتنبهــور

**رنتهمبور**:- (ر+ن + تَ+ م + بو+ر) [ه. اس معرفه]. و ـــــ رتنبول ـ

پښتنې جــونـــه دې زلفې بـاد تـه نيسي
چې شمال ئې بوي راوړي په رنتهبور کښې خوشحال

**رنج**:-(رَ+ن + ج) [ف. اس. مذ].(۱) رنځ. روک. مرض (۲) خواري. کړاو (۳) خواشيني. خوابدي.

**رندځرومه**:(ر+ن+ځ+رو+مَ+ه)[پ.اس.مؤ.ج:رندځرومې].رنجلومه.رنجونړے.رنځو نړے رجرومه. د رانجو اينبودو بوجتکے. د رنځو کځوره. هغه شے چې رانځه په کښې ساتلے شي. شرمينکه.

**رنجک**:-(ر+ن+ج+ک) [ق.اس.مذ]د ټوپک دارو چې مېده شوي وي.باروت.

ټپه: نور په رنجک په وينو سور شي
د نامردئ آواز دې را مه شه مئينه

**رنجکانړے**:-(ر+ن+ج+کا+ن+ړے) [ق: پ. اس. مذ. ج: رنجکانړيان] مخفف د رنجو کانړے هغه کانړے چې رانجهٔ ترې نه جوړېږي. د رنجو کانړے.

**رنجکه**:-(رَ+ن+ج + کَ) [ق:پ.اس.مؤ.ج: رنجبکې] دساګو يو قسم. چولايې.

**رنجلومه**:- (رَ + ن + ج + لو + مَ+ه) [پ.اس.مؤ] و ـــــ رنجړوومه.

**رنجونړے**:- (رَ + ن + ج + نو + ے) [پ.اس.مؤ] رنجونړے ـــــ رنجړومه.

**رنجونړے**:- (رَ + ن + جو + ن + ړ ے) [اس.مؤ]. و ـــــ رنجړومه.

**رنجه**:- (ر+ن+ ج) [پ.اس.مذ.ج].

**رانجه** :- (را+ن+ج+ه) [پ. اس. مؤ. ج: رنجې](۱) چړه. چيړه. څيره. دکپړې لته.(۲) د ريښمينو جامو په معنی هم استعمالېږي(۳) جامې. رنجې.

چوړې که واغوندې رېښمينې رنجې
بــل څــهٔ بــه نهٔ شي په ټنجې پنجې خوشحال

**رنځ**:(ر+ن+ځ/ز)[پ.فا:رنج.اس.مذ.ج:رنځونه].(۱)مرض.بيماري.ناجوړتيا(۲) غم. درد. دوک. خفګان ـ

وې ئې طبيب ته چې د رنځ دارو مې اوکړه
وې چې دارو کړم اوربلېږي په پرهــار ستا خوشحال

**ـــــ دې په بيعه اخېستل**:- اص. غم يا خفګان پالل. غم په زړهٔ کښې ساتل فکر کول. (۲) خا مخا ځان په څهٔ غم اخته کول.

**ـــــ خورېدل**:- اِص.مرض يا بيماري عام کېدل. مرض خورېدل مرض

د يو نه بل ته لګېدل.

____**دعاشقۍ**:- اِص .د عشق بيماري. رنځ د مينې.

رنځ د عاشقۍ چې زهٔ ظاهر کړم د طبيب ته
هېڅ وئيـلے نـهٔ شي طبيبـان او حکيمان رحمٰن بابا

____**دمينې**:- اِص.و ____رنځ د عاشقۍ.

چې پرې رنځ د مينې تېر وه
هغـه هســـې حــکـماء علي خان

____ **راتلل**:- اِص .(۱) مرض راتلل. ناجوړه کېدل. (۲) خفګان راتلل يا پيښېدل.

____**رسوول**:- اِص .بل ته غم يا خفګان رسول. دردول. ازارول. خفه کول.

____ **ښه کېدل**:- اص.مرض يا بيماري ښهٔ کېدل. د نا جوړتيا نه رغېدل.

____ **کول**:- اِص.غم يا نول کول. فکر کول. زړهٔ خوړل. انديښنه کول.

____ **کېدل**:-اِص.غم کېدل. فکر کېدل. انديښنه کېدل. مرض کېدل.ناجوړه کېدل.

____ **لګېدل**:- اِص.د چا بل نه بيماري اخېستل. په لګېدونکي مرض اخته کېدل.

**په ____ګرفتارېدل**: اِص .رنځ لګېدل ناجوړه کېدل. په مرض اخته کېدل.

درد و غم د عاشقۍ چې ډېر مشکل دے
هېڅ ســړے دې په دا رنځ ګرفتار نهٔ شي رحمٰن بابا

**د ____دارو موندل**:-اِص.د بيمارۍ علاج کېدل. د مرض دارو موندل.

د هر رنځ دارو موندل شي
د بـــد خـــوي نشتـه دوا خوشحال

**د زړه ____**:- اِص .(۱) د زړهٔ بيماري. د زړهٔ ناروغتيا .(۲) هغه غم او فکر چې زړهٔ خوري.

محبت بې خدايه واړه د زړهٔ رنځ دے
کــه مــدام له چنګ و نابه محبت کا رحمٰن بابا

**نرے ____**:-اِص.(۱) د تب دق مرض. لويه بيماري. تي بي. (۲) هغه غم يا فکر چې زړهٔ خوري.

**رنځړه**:-(ر+ن+ځ/ز+ړ+ه) [ق: اِس. ج]. رانځړهٔ. د نځنړه. رنجړه. زنړه - زرنه.تار کول. کول تار. تور ټينګ تيل شان چې عام طور سره د سرکونو پخولو کښې استعمالېږي.

**رنځړے**:- (رنځ + ړے) [پ.اِس ص. مذ]رنځمن. ناجوړه. ناروغه.

**رنځغاشے**:-(ر+ن+ځ/ز+غا+شے يا خے) [ق:پ. اِس.مذ.ج:رنځغاشي].خجور. روغن جوش

**رنځکه**:-(رَ+ ن + ځ/ج / ؤ + کَ) [ق: پ. اِس. مؤ: ج: رنځېکې] د انګورو خوشه.ګونګورے. وښکالے.

**رنځمن**:-(ر+ن+ز+م+ن) [پ. اِس ص . مذ . (مؤ. وا: رنځمنه ج: رنځمنې] رنځور. ناروغه ناجوړه، بيمار. مريض.

**رنځنه**:- (رَ+ ن + ز + ړ + ن+ه) [ق: پ. اِس] و ____رنځړه.

**رنځور**:-(ر+ن+ځو/جو/زو+ر)[پ.اِ س-ص.مذ-ج:رنځوران] (مؤ: رنځوره .ج . رنځورې . رنځورانې). ناروغه. ناجوړه. چې رنځ پرې لګېدلے وي.

طبيبان د رنځ و هر لوري ته ډېر وي
رنځـوران ولې د وخته چـا رندهٔ کا خوشحال

____**کول**:- اِص.رنځورول. ناروغه کول. ناجوړه کول. بيمارول.

____**کېدل**:- اَص.رنځورېدل. بيمارېدل. ناجوړه کېدل. بيماره کېدل.

کــه پــه سلو کښې به خواست د چا قبلېږي
خدا ے دې هېڅوک رنځور نهٔ کا بې علاجه رحمٰن بابا

____ **تون**:-(رنځور+تو+ن)[پ.اِس. مذ]د رنځورانو ځا ے.شفاخانه. هسپتال درمل تون

____ **غاړے**:- (رنځور+غا+ړے) [پ.اِس. مذ . ج: رنځور غاړي. مؤ: رنځور غاړې] هغه سړے چې اکثر بيماره وي. هغه څوک چې تل رنځور وي.

____ **کېدل**:- اِص.مدام رنځور اوسېدل.

**رنځورول**:-(ر+نَ+جو/ زو +ر+ؤ+ل) [پ. مص مت]رنځور کول. بيماره کول.ناروغه کول. ناجوړه کول.

**رنځورونه**:-(رَ+ن + جو/ زو+رَ+و+نَ) [پ.ص] رنځور کول. بيمارهونه. ناروغه کونه. ناجوړه کونه.

**رنځورونکے**:-(ر+ن+جوزو+ر+دو+ن+کَے) [پ. فاع. مذ. ج: رنځوروونکي. مؤ: رنځوروونکې] رنځور کوؤنکے بيمارروونکے. ناجوړه کوونکے. ناروغه کوونکے

**رنځوري**:- (ر+ن+جو/زو+ري)[پ.اِس.مؤ] .ناروغتيا .مرض بيماري. ناجوړتيا .

**رنځورېدل**:-(ر+ن+جو/زو+رے+د+ل)[پ.مص.لا]ناروغه کېدل.

**رنځورېدنګ**:- (ر+ن + جو/زو + رے + ؤ + ن + ګ) [ق: پ. حمص] رنځورېدنه.

**رنځورېدنه**:(ر+ن+جو/زو+رے+ؤ+ن+ه)[پ.حمص] .رنځورېدهٔ.رنځورېدنګ. ناروغه کېدنه. ناجوړه کېدنه. بيمارېدنه.

**رنځورېدونکے**:-(ر+ن+خو/زو+رے+وو+ن+کَے)[پ.مذ.ج:رنځورېدونکي مؤ. رنځورېدونکې]. ناروغه کېدونکے ناجوړه کېدونکے. بيمارېدونکے.

**رنځورېده**:- (ر+ ن + جو/ زو + ريه + د) [پ.حمص] . و____رنځور ېدنه .

**رنځول**:-(ر+ن+ج/ر+ؤ+ل) [پ.مص مت]. (۱) تکليف ورسوول. کړاک ورکول.(۲) خبره اوږدول.

**رنځونه**:-(ر+ن+جَ/ز+ؤ+ن+ه)[پ.حمص] .(۱)تکليف وروسونه.کړاک ورکونه.کړان پيښول. خبره اوږدونه. خبره نه خلاصونه

**رنځوونکے**:- (رَ + ن + جَ/ زَ + وو + ن + کَے) [پ. فاع. مذ. ج: رنځونکي.مؤ:رانځونکې]. (۱) تکليف ورکوونکے. کړاک ورکوونکے. کړوونکے. (۲)خبره اوږدوونکے. خبره نهٔ خلاصوونکے.

**رنځه**:- (رَ + ن + ج/زِ) [پ.اِس. مؤ: ج رنځے]، [پ.اِس.مؤ: ج: رنځې] (۱)ريخه. د څاروی دست. (۲) رنجه. څيره.

____ **وهل**:- اِص. د څاروي دستونه کول. د ريخ تلل.

**رنځېدل**:-(رَ+ن+جے/زے.د.ل)[پ.مص-لا] (۱)تکليف رسېدل-دردېدل.کړېدل (۲) خبره اوږدېدل . خبره نهٔ فيصله کېدل.

اوس د يار په غېږ کښې ونيوهٔ هوس کړه
چې ئې ډېـر پـه بېلتانهٔ کښې رنځېدلے خوشحال

**رنځېدلے**: (ر+ن+جے+ے/زے+ د+لَے)[پ.مف.مذ.ج: رنځېدلي .مؤ : رنجېدلې] کړېدلے. دړوېدلے.

**رنځېدنه**:-(ر+ن+جے/ زے+د+نَ) [پ.حمص].(۱)رنځېده. کړېدنه تکليف رسېدنه. (۲) مخبره اوږدېدنه. خبره نه فيصله کېدنه.

**رنځېدونکے**:-(رَ+ن+ جے/زے + وو + ن + کَے) [پ. مف.مذ.ج: رنځېدونکي-مؤ: رنځېدونکې] کړېدونکے. په رنځ اخته کېدونکے.

**رنځېدهٔ**:- (ر+ن + جے/زے + ؤ) [پ.حمص] و ____رنځېدنه.

چې ئې وي برخه له ايمانه
خلاص به شي له رنځېدهٔ حافظ

**رنچول**:- (ر+ن+چ+و+ ل) [پ (مو) مص مت]د بل نه په زور څهٔ څيز اخېستل.رانيول. يا تروړل.

**رند**:-(ر+ن+ د) [ه.اِس.مذ]د قلا په ديوال يا فصيل کښې هغه سورے چې د

هغې نه په دښمن ډزې کولې شي. د مورچې سورے.

**رند**:-(ر+ن+ د) [اپ. فا. رند. اس. مذ.ج: رندان] (۱) ازاد. چې هېڅ قسم پابندي په ځان نۀ مني- بې قېد. (۲) شرابي. بدمست. (۳) هغه سړے چې په ظاهره خراب خو په باطن کښې ښه وي. (۴) بې دينه. لامذهب.

**رندانه**:-(ر+ن+دا+نَ+ه) [فا.ص]. (۱) ازاد مذهبه. ازاد روَ. (۲) شرابي. بدمست

ستا د خولې له حقيقته صوفي څۀ زده
لـه دې رازه څوک خبر دي بې رنـدانو رحمٰن بابا

**رندتوب**:-(رند+تو+ب) [اپ. اس. مذ]. رندي (۱) درندانو کار. ازاد منش. چې پابندي په ځان نۀ مني. (۲) بدمستي. شراب خوري.

**رندک**: (ر+ن +د+ک) [ق: پ. اس. مؤ. ج: رندکي] د اوبو يا د وينو ماره.

**رندک وهل**:- اص.د وينو دارې بهېدل.

**رنده**:-(ر+ن+دَ+ه) [فا. اس. مؤ. ج: رندې] دلرګي مخ هوارولو يا سپينولو دپاره د اوسپنې يوه اله يا کالے. د ترکاڼيو کالے

___ **کول**:- اص په لرګي بنده وهل. لرګے صفا کول يا هوارول. رنده وهل. رنده ګرځول

___ **کېدل**:- اص په رنده لرګے صفا کېدل يا هوارېدل.

___ **ګرځول**:- اص. و ___ رنده کول.

___ **وهل**:- اص. و ___ رنده کول.

**رندي**:- (ر + ن + دي) [فا. اس. مؤ] (۱) درندانو کار ___ رند توب. (۲) بدمستي. شراب خوري (۳) ازاد منش. بې پابندي.

لـه شېخۍ راتـــه بهتره شوه رندي بيا
ناسحان مې دې په سل رنګه غندي بيا حميد

د ___ **نوم په جهان تلل**:- اص په رند مشهورېدل

چې رمې نوم په جهان لاړ شو د رندۍ
د رنـدۍ کار بـه نـۀ پرېږدم له دسته خوشحال

**رنړ**:- (ر+ن+ړ) [اپ راورک. ص]. تول. کلهم.

**رنړ**:- (ر+ن+ړ) [اپ.اس. مذ] اړي. ضد. خپلې خبرې نه نه اوړېدل.

___ **کول**:-اص ،اړي کول. ضد کول. په خپله خبره کلک پاتې کېدل.

___ **توب**:- (لنړ+ تو+ب) [اپ.اس.مذ] رنړوالے اړي. ذليل. جهل. ضد.

___ **والے**:- (رنړ+وا+لے) [اپ.اس.مذ]. و ___ رنړ توب.

**رنړه**:-(ر+ن+ړ+ه) [اپ. ص. مؤ. ج:رنړې] (۱) د کنډې په مقابله کښې استعمالېږي، خاوند لرونکې ښځه. مېړو ښه (۲) د کونډه سره يو ځاے په طور- تابع مهمل رائي يعنې کنډه لنډه کونډې رنډې يعني کونډه ښځه يا ښځې.

**رنډۍ**:-(ر+ن +ډ+ئيی) [ه. اس. مؤ. وا] (۱) بد چلنه ښځه. ډمه. کنجرۍ. کبې ښځه. (۲) کم ذاته او بدکاره ښځه.

___ **کول**:- اص. کور کښې ډمه اچول. د ډډ سره واده کول.

___ **باز**:- (رَنډۍ + با + ز) [فاتر. ص. مذ] کنجريو يا ډموته تلونکے. ډمو سره تعلقات لرونکے. عياش حرامکار اوبد چلنه سړے.

**رنړېدل**:-(ر+ن+ړې+د+ل) [اپ. مص لا] (۱) اړي نيول. ضد کول. ذيل نيول. جه کېدل (۲) خاوند والاکېدل. مېړوشه کېدل.

**رنړېدنه**:- (ر+ن+ړې+د+ن+ه) [اپ.حمص] (۱) اړي کېدنه. جه کېدنه. ذيل کوونه. ضد کوونه. (۲) خاوند والاکېدنه. مېړوشه کېدنه.

**رنړېدونکے**:(ر+ن+ړې+دو+ن+کے)[اپ.مف.مذ.ج:رنړېدونکي.مؤ: رنړېدونکې]. اړي کوونکے. ضد کوونکے. جه کوونکے.

**رڼ**:- (رَ + ن + ړ) [ق: پ.اس.مذ]. کچه پوست. کچه څرمن.

**رڼا**:- (رَ + ن + ړان) [اپ.اس.مؤ.ج: رڼاګانې]. روڼا. روښناي.

که رڼا ده پېروي د محمدؐ ده
ګنـه نيشته پـه جهان بله رڼا رحمٰن بابا

___ **تلل**:-رڼا نۀ پاتې کېدل. تياره کېدل. د سترګو تلل. د سترګو د ليدو قوت نۀ پاتې کېدل رندېدل.

___ **غوښتل**:- اص .درڼا خواهش کول. روښناي طلب کول.

که په توره تاريکۍ کښې رڼا غواړې
ننـدارچي د يار د زلفو د رخسار شه رحمٰن بابا

___ **کول**:- اص .روښانه کول. روښناي کول. تيارۀ لرې کول.

خداے يو هسې فکر راکړ
چې ئې ملک راته رڼا کړ خوشحال

___ **کېدل**:-اص .روښانه کېدل. روښناي کېدل. تياره لرې کېدل.

___ **ورځ يا روځ**:- ورځ چې په کښې رڼا وي او هر څۀ ليدے شي. شپې د تيرې په مقابله کښې عموماً د قتل ډا کې وغېره په موقع وئيلے شي چې دا قتل وغېره په داسې ديده دليرۍ سره وکړې شو چې دا ويره هم ورسره نۀ ده چې څوک به مو اووينې يا ونيسي. د ورځې په رڼا کښې بې ويرې ډزې.

توره شپه په اشناياون رڼا ورځ ده
رڼا ورځ په نا اشناؤ تور ګمے دے رحمٰن بابا

___ **ورځ توره شپه يا تور لوګے کېدل**:- په چا ډير زيات غم راتلل. ډېرمصيبت يا غم کښې راګېرېدل.

توره شپه په اشنايانـــو رڼا ورځ ده
رڼـا ورځ په نااشناؤ تــروږمے دے رحمٰن بابا

___ **ورځ شپه کېدل**:- مح (۱) په روښانه ورځ کښې توره تياره کېدل. په سپينه رڼا کښې هېڅ نه لېدل. رڼا ورځ شام کېدل. (۲) بد حاله کېدل.

شـپه لاپرېــږده رڼـا ورځ رابانـدې شـپه شـوه
د رحمٰـــن مـــاه تمامـــه راشـــه راشـــه

___ **ورځ شام کول**: په روښانه ورځ کښې تيارۀ راوستل. خوشحالي په غم بدلول.

په سپين جمال چې تار په تار دې زلفې عنبر فام کا
محبوبه غواړې دا چې د رڼا ورځ پـه عاشق شام کا خوشحال

___ **ورځ شام کېدل**:- مح و ___ رڼا ورځ شپه کېدل.

په ___ **زيست کول**:-اص .په رڼا ژوند تېرول. د رڼا په وجه ژوندے پاتے کېدل. په سپينه ورځ د ورځې په رڼا کښې. په ښکاره.

که نور خلق د آفتاب په رڼا زيست کا
مخ د تــرکو دے آفتاب زما د سترګو رحمٰن بابا

**په مخ** ___ **کېدل**:- اص .څوک چې چرته ځي نو ورته وئيلے شي چې په مخه دې رڼا شه يعني وخت دې ښه تير شه. خوشحاله اوسې- کامياب کېدل. مهم دے سرته ورسۀ (دعائيه)

**دآفتاب په څېر** ___:- اص.د نمر په شان روښانه. ډير ښائسته. د رڼا ورځې (يا روځې) د سپينې ورځې. د روښانه او رڼا ورځې چې پټ اونا معلومه نۀ وي. لکه د رڼا ورځې قتل.

سپين مخونه سرې لنبې دي د دلبرو
هــر ديدن ئې د آفتاب په څېر رڼا کا رحمٰن بابا

**رڼاګي**: (رڼا+ګ+ ئي) [ق: پ. اس. مؤ] يو خړرنګے ورکوټے مارغه چې په غاړه ئې اوسينه د شين رنګ ډېره ښکلې حلقه لري.

**رڼاي**:- (ر+ن+را+ ئي) [اپ. اس. مؤ] روڼائي. روشني. رڼا.

**رڼغوني**:- (ر+ ن + ړ + غو + نې) [ق: پ.ص.مؤ] تته رڼا. لږه رڼا. رڼا شان.

**رڼکے**:-(ر+ن+ړ+کے) [ق: پ.اس.مذ.وا.ج: رڼکي] د غوړ په شاراوتے هډوکے.

**رڼکي**:- (ر + ن + ړ + کَ + ي) [ق: پ.اس.مؤ] شېشه مالګه.

**رڼوړے**:- (ر + ن + ړو + ړے) [ق.پ.اس.ص.مذ] رڼې اوبۀ. صفا اوبه.

**رڼوځاے**:-(ر+ ن+ړو+جا/زا+ئے)[ق:پ.ا.س.مذ]کوچیان چې په خپلو کیږدو(کېږدو، خیمو) کښې د ډیوې په ځاے د رڼا دپاره کوم اور بلوي.

**رڼوزے**:- (ر + ن + رو + زَے) [ق: پ.اِس.مذ] لږه رڼا. معمولي رڼا. تته رڼا.

___**کول**:- اص.لږه رڼا کول.

**رڼوکے**:-(ر+ن+رو+کے) [ق: پ.اِس.مذ.ج: رڼوکي]. نیم مرے. دنیم سر درد.شقیقه.

**رڼول**:-(ر+ن+ړ+و+ل) [اِپ.مص مت] (۱) روڼول. صفا کول. رڼاته راویستل.(۲) اَف.رڼول. ابادي رنګول.

**سترګې___**:- اص.سترګې پرانستل. سترګې روڼول.

که زۀ نۀ وایم تۀ خو دې سترګې رڼې کړه
کــور دې خور شه تۀ چارپایۍ ئې که آدم      حمید

**رڼولے**:- (ر + ن + ړ + ؤ + لَے) [اِپ.مف.مذ.ج: رڼولي: مؤ: رڼولې](۱) رڼا ته رایستلے. روڼولے. (۲) نړولے. رنګ کړے.

**رڼوونکے**:- (ر+ن+ړَ+وو+ن + کَے) [اِپ.فاع.مذ. ج: رڼوونکي. مؤ: رڼوونکې] (۱) روڼوونکے. صفا کوونکے. (۲) مړوونکے. رنګوؤنکے.

**رڼه**:- (رَ + ن + ړ) [اِپ: اس.مؤ.ج: رڼې] ریچه. په سر کښې د سپږې تخم.

**رڼه**:- (رَ + ن + ړَ + یا رَه) [اِپ.ص.مؤ] دویزه. صفا.

چې ابرې دې قدر ئې شي پرې ښودې
آئینــه د هغـــو زړونـــو دې رڼـــه      حمید

___**کول**:- روښانه کول. روڼول.

**رڼي**:- (رَ + ن + ړَي) [ق: پ.اِس.مؤ] روڼه.

**رڼې**:- (ر+ ن +ړ+ے)(۱) صفا. شڼاني. خاهي. لکه رڼې اوبۀ. (۲) طنزاً. هغه پې. چې اوبه په کښې زیاتې اچولې شوې وي.(۳) پرانستے. غړېدونکے.

لــکــه بت چې پـــه رڼو سترګو اودۀ وي
هسې زۀ په بېدارۍ کښې اوړے خواب یم      رحمٰن بابا

**رڼېدل**:(ر+ن+ړے+و+ل)[اِپ.مص.لا](۱) روڼېدل.صفاکېدل.خبره سپنېدل.(۲)خبره صفا کېدل.معامله رڼاته راوتل.خبره سپنېدل.(۳)نړېدل.رنګېدل. (لهجه)

**رڼېدلے**:- (ر + ن + ړے + د + لَے) [اِپ.مف.مذ.ج: رڼېدلي. مؤ: رڼېدلې] (۱) روڼېدلے. صفا شوے. (۲) نړېدلے. رنګ شوے (لهجه)

**رڼېدنه**:-(ر+ن+ړے+د+نَ+ه) [اِپ. حمص] (۱) روڼېدنه.صفا کېدنه. (۲)رڼېدنه. ___رنګېد نه (لهجه)

**رڼېدونکے**:(رَ+ن+ړے+دو+ن+کَے)[اِپ.مف.مذ.ج:رڼېدونکي.مؤ:رڼېدونکې] (۱)روڼېدونکے.صفاکېدونکے.(۲)نړېدونکے.رنګېدوونکے (لهجه)

**رنګ**:- (رَ+ن+ګ) [اِپ.اس.مذ.ج: رنګونه](۱) روغن. وارنش. پالش.(۲) شکل و صورت. کړۀ وړۀ(۳) شان. قسم (۴) چلند. طرز. (۵) خوي خصلت. (۶) د تاش په لوبه کښې دیورنګ پاڼې. (۷) صورت. دطریقه.

رنګ ئې د سـرې ؤ امــا خوي د ښـاپیریو
تن ئې لکه سیم ؤ په زړۀ سخته سنګ خاوره      خوشحال

لـــه نیســـتۍ د هســـتۍ صـــورت پیـــدا کـــړو
هســـــې رنــــګ پروردګـــــار د ے رب زمــــا

که کتاب کله رباب په لاس کښې واخلم
بـــارې درد مې په هېڅ رنګ نۀ که کمے      رحمٰن بابا

___**اچول**:- اص(۱) رنګ غورځول. (۲) دروغ وئیل.

___**اخستل**:- اص. خوي خپلول. د چاپه شان کېدل. لکه متل دے "ختکے له ختکي نه رنګ اخلي".

تا چې رنګ د ګلو واخست زۀ پوهېږم
زرغونه بـه په څهره زما کونـګو کړې      رحمٰن بابا

___**الوتل**:-اص(۱)رنګ تښتېدل.رنګ نۀ پاتې کېدل.رنګ خرابېدل.(۲)حېرانه کېدل.وېرې اخېستل.بې ډوله کېدل.شکل خرابېدل. (۳) شرمېدل.

___**املوکه**:- اص. املوک پشان رنګ لرونکے. توره بدرنګه.

د ګلرنـګو نـــاز په هر کله د وړو د ے
بې هوده بې ځایه ناز که رنګ املوکې      خوشحال

___**امیزي**:- (۱) رنګ ګډول. (۲) په څۀ خبره کښې د خوند دپاره د ځانه خبرې زیاتول.(۳)عبارت ارائي.مبالغه.(۴)نقاشي. مصوري. رنګسازي.

___**بائلل**:- اص.بې رنګه کېدل. بې ډوله کېدل.

___**بدلول**:- اص.(۱) بل شان کېدل. په بل حال کېدل. (۲) چلند بدلول.

___**بدلېدل**:- اص. (۱) بل شان کېدل. په بل حال کېدل. (۲) خوي بدلېدل. چلند بدلېدل. (۳) حیرانه کېدل. (۴) شرمنده کېدل.

___**بدول**:- اص.(۱) د دود دستور او رسم و رواج خلاف کار کول. رنګ بدول.طریقه خرابول.(۲)د بدنامۍ سبب جوړېدل.بدنامول.تهمت لګول.

___**بدېدل**: – اص. رنګ بدېدل. بدنامي کېدل. تهمت لګېدل.

___**بنګ**:- اص.لړلے تیلے. په وینو ککړ.

___**تتېدل**:- اص. و ___رنګ الوتل.

___**تښتېدل**:- اص.(۱) رنګ الوتل. (۲) شرمنده کېدل.

په لیــدۀ مې د یار اوتښتې رنګ هسې
لکه نمر په کتاب لګي د مهتاب سخت      حمید

___**ځلقېدل**:-اص.(۱)بړق وهل.بړقېدل.(۲) خوشحاله (خوشحاله)ښکارېدل.

___**ختل**:- اثر اخستل یا قبلول.

___**خرابول**:- (اص)د مجلس یا د څۀ کار دخوند خرابول. په دوان مجلس یا کار کښې داسې خبره یا حرکت کول، چې د مجلس یا ددغې کار خوند پاتې نه شي.

___**خرابېدل**:- اص.و ___رنګ الوتل.

___**زېړېدل**:- اص .(۱) کمزورے کېدل. صحت خرابېدل(۲) شرمنده کېدل. (۳) وېرې اخېستل.وار خطا کېدل.

چې پـه رګ مې ګوتې کښېږدې رنګ ئې زېړ شي
طبیبان بـــه مې پــــه څـــو د رنځ عـلاج کا      خوشحال

___**ښه کول**:- ا.رنګ ښه کول. دنېک نامۍ کار کول. رنګ

___**ښه کېدل**: – اص.رنګ راوتل. صحت ښۀ کېدل ښکلے ښکارېدل.

___**غورځول**:- اص.رنګ تښتېدل. رنګ تلل. بې ډوله کېدل.

___**کتل**:- د حالاتو جائزه اخستل.

___**کول**:-اص.(۱)رنګ ورکول.رنګول.(۲)روغن یا وارنش کول. پالش کول.

ما په تا پسې دا سپینې جامې رنګ کړې
تـــۀ لابیا پـــه ما ګمان د نام و ننګ کړې      رحمٰن بابا

___**کېدل**:- اص. رنګ ورکولے کېدل. رنګېدل. روغن یا وارنش کېدل.پالش کېدل. (۲) خوي بوي اخېستل.

___**ورانېدل**:-اص.بې خوندې پیدا کېدل. بې اتفاقي پیدا کېدل. حالت خرابېدل.

زر ئې رنګ د اشنايۍ سره وران شي
چې پیـــدا شي د اشنا لـــه اشنا طمع      حمید

___**ورکول**:- اص.(۱) رنګول. روغن ورکول (۲) خبره په خوند او طریقه کول. (۳) خبره یو خاص مقصد یا اړخ ته اړول.

څوک و سنګ شي رنګ د ګلو ورکولے
دۀ و سنګ ورکړے رنګ د ارغوان د ے      رحمٰن بابا

**ـــــ ورکېدل**:- اص .رنګول. روغن یا وارنش ورکولے کېدل.

**ـــــ ورکېدل**:- اص.(۱) رنګ بدېدل. رنګ خرابېدل.(۲) شکل و صورت خرابېدل. بدرنګ کېدل.

تۀ سړے ئې که څاروے ئې رنګ دې ورک شه
د بهار پـــه ســــرو ګلـــونو باندې پېښې ږدې خوشحال

**ـــــ وهل**:- اص .اندازه لګول. قیاس کول.

**ـــــ ئې مه وینم**:- اص .رنګ ئې ورک شه. د چا د عمل یا د کار نه د کرکې د څرګندولو په وخت وئیلے شي.

که پستې پستې خبرې د راز نۀ کا
د جنت د حورو مـــه وینم رنـګونه خوشحال

**ـــــ (ئې) ورک شه**:- بد دعا یا ښیره ده. په محاوره کښې د ناخوشۍ داظهار د پاره وئیلے شي.

د یارۍ لائق نۀ دے رنګ ئې ورک شه
چې ئې نـــۀ وي پـــه یارۍ کښې وفا خوشحال

**په ـــــ کول**:- اص. په شان کول.

مـــا د کښلیو تـــداره کړه زاهد تنګ کړ
ښۀ خو دا چې خدا ے دے هم زما په رنګ خوشحال

**د خبرې ـــــ خرابول**:- اص .معامله ورانول ـــــ ورانې پیدا کول.

**ـــــ د خبرې خرابېدل**:- اص .معامله ورانېدل. خبره ورانې. ته اوړېدل.

**ـــــ د بو**:- اص. سرخي. سور رنګ.

کـــه تـــۀ وینې زمـــا پټې ښنې دلـبره
رنګ د لبو دې ګواهي دي په دا باب کښې رحمٰن بابا

**رنګونه بدلول**:-(ـــــ ب+و+ل+ول) (۱) حالتونه بدلول، کله یو شان ښکاره کېدل کله بل شان. (۲) ابن الوقتي. وخت سره شړل.

**رِنګ**:- (ر + ن + ګ) [انګ. اس.مذ.ج. رنګونه]. (۱) ګوتمۍ. ګوته. څلے (۲) اکاړه. د مقابلې د پاره مخصوص مېدان حلقه. (۳) په سرکس کښې (د لوبو) د نمائش مېدان.

**رنګارنګ**:- (رَ + ن + ګا + رَ + ن + ګ) [اپ.ص]. قسم. قسم. په څورنګه.

زۀ خو د زړۀ درد غوارم په هریوه مذهب کښې
تا زده ستا خبرې چې نقلونه رنـګا رنګ کړې خوشحال

**رنګ په رنګ**:- و ـــــ رنګا رنګ.

**رنګت**:- (رَ + ن + ګ + ت) [اپ (ظفر). اس.مذ]د ماشوم په دور ژړا. په رونګه رونګه ژړا رینګه رینګه.

**رنګټ کول**:- اص.د ماشوم ژړل. رونګه رونګه کول. رینګه رینګه کول.

**رنګتے**:- (رَ + ن + ګ + تِےَ) [ق: پ.اس.مذ.وا.ج. رنګتې]. غرے. ویګران.

**رنګدار**:-(ر+ن+ګ+دا+ر)[فا.اس.ص.مذ.و.ج.مو.وا:رنګداره،ج:رنګدارې] (۱) رنګ لرونکے. رنګین. (۲) ښکلے.

**رنګړ**:- (ر+ن+ګ+ړ)[اپ (ظفر)ص](۱) رنګړے. مات ګټ. پریوتے. هغه فصل چې سېلۍ یا باران په مزکه څملولے وي. (۲) هغه فصل چې تار تار او دانه دانه ولاړ وي.

**رنګروټ**:-(رَ+ن+ګ+رو+ټ) [اپ. اس. مذ. ج: رنګروټان]. انګ. رنګروټ. (۱) نوے برتي شوے سپاهي. د سپاهي توب نوے چل زده کوونکے. (۲) نوے چل زده کوونکے. ناتجربه کار.

**رنګ و روغن**:-(ر+ن+ګ+رو+غَ+ن) [اص.مذ]. (۱) ښائست. ښکلا. حسن. پرق پروق. رونق. (۲) ظاهري. ټیس ټپاس. نمائشي. پرق پروق.

**رنګریز**:- (ر+ن+ګ+رې + ز) [فا. اس ص. مذ. ج: رنګریزان](۱) جاموته رنګ ورکوونکے. رنګوونکے. (۲) نیل ګر. رنګ ساز.

رنګریـزان اول خپلـې ږیـرې رنـګ کـړي
بیـا هالــه دې دوي رحمٰـن تــه وائــي پنــد

**رنګریزي**:- د رنګ ریز پیشه. جامو له د رنګ ورکولو کار.

**رنګړے**:-(ر+ن+ګ+ړے) [ق: پ. ص. مذ.وا.ج. رنګړي]. رنګے. د یو بل نه جدا او بیل بیل. دانه دانه. تار تار.

**ـــــ کول**:- اص .(۱) جدا جدا کول. بېلول. (۲) دېټې د بوټو نه څنې ایستل چې نور بوټي جدا جدا شي. رنګ کول.

**ـــــ کېدل**:- (اص) .(۱) جدا جدا کېدل. بېلېدل (۲) د فصل یا د پټې د بوټو نه څنې بوټي ایستل کېدل. رنګے کېدل.

**رنګژړے**:- (رنګ + ژ + ړے) [اپ.اس ص.مذ] هغه څوک چې رنګ ئې زېړوي. رنګ زېړے. زېړے ګونې.

**رنګساز**:- (ر+ن+ګ+سا+ز) [فا. اس ص. مذ. ج رنګسازان](۱) و ـ رنګریز (۲) هغه سړے چې رنګونه جوړوي(۳) ټانکې او لارۍ، بسونه وغېره رنګوونکے. پینټر

**ـــــ شوے**:-(ـــــ ش + وے) [اص. مذ. ج: رنګ شوي مو: رنګ شوې] هغه څیز چې رنګ ورکړے شوے وي. رنګینه.

**ـــــ لیډر**:-(رنګ + ي+ډ+ر) [انګ. اس ص. مذ] د حلقې مشر. سر غنه. د وران کارو یا باغیانو مشر (عموماً په بده معنې کښې استعمالېږي).

**ـــــ ماسټر**:-(رَنګ+ما+س+ټ + ر) [انګ. اس ص. مذ] دسرکس منتظم

**ـــــ محل**:-مَ+ حَ + ل) [اس.مو.ج: رنګ محلونه](۱) د عیش یا دسیل ځاے.(۲) د اکوړې او زیارت کا کا صاحب په مېنځ کښې د مغلو د دور یو ځاے.

**رنګوټ**:- (رَ + ن + ګو + ټ) [اپ.اس.مذ](۱) رنګروټ. نوے سپاهي.(۲) ناتجربه کار سړے. نوے زده کونکے.

**رنګول**:- (ر+ن+ګ+و+ ل) [اپ. مص مت](۱) څۀ شي ته رنګ ورکول. روغن کول. پالش ورکول. (۲) په مال او دولت د چا حالت ښۀ کول.

**رنګولے**:-(رَ+ن+ګَ+ؤ+لے)[اپ.مف.مذ.ج:رنګولي مؤ: رنګولې]. رنګ کړے. رنګ ورکړے شوے. روغن یا پالش کړے.

**رنګونه**:- (ر+ن + ګ + ؤ + ن+ه) [اپ.حمص] رنګ ورکونه. روغن ورکونه.

**رنګوهن**:-(ر+ن+ ګو+ نَه) [اپ.اس.ج](۱) درنګ جمع. روغن. (۲) طور طریقې. چالونه.

**رنګوونکے**:(ر+ن+ګ+وو+ن+کَے)[اپ.فا ع.مذ.ج:رنګوونکي.مؤ:رنګوونکې].رنګ ورکوونکے روغن کوونکے. رنګساز. پینټر.

**رنګي**:- (ر+ن+ګي) [ق: پ. اس.مؤ]د رنګ ورکولو کار. رنګریزي. د رنګ کولو طریقه. د روټن او پالش کولو کار.

**ـــــ کول**:- اص د رنګ کولول کار کول. د روغن کولو کار کول.

**رنګے**:- (رَ + نَ + ګَے) [اپ. ص. مذ].(۱) رنګړے. جدا جدا. بیل بیل.(۲) چې ګڼ نۀ وي. بوټي ئې لرے لرے وي.

چـــا کـــبر جن ظـــالـمـــانو په آده آده کړو
داسې ئې خور داسې رنګې دومره ئې وزېلو پریشان خټک

**رنګېدل**:-(رَ+ن+ ګې+د+ل) [اپ.مص لا](۱) رنګ کېدل. رنګ ورکولے کېدل.روغن کېدل. پالش کېدل.(۲) مال و دولت په لاس ورتلل.

**رنګېدلے**:-(ر+ن+ګې+د+لے) [اپ.مف. مذ.ج: رنګېدلي. مؤ: رنګېدلې]. رنګ شوے. رنګ ورکړے شوے. روغن یا پالش ورکړے دے.

**رنګېدنه**:-(ر+ن + ګې+د+نَ+ه) [اپ.حمص]. رنګ کېدنه. رنګ ورکولے کېدنه.روغن یا پالش کېدنه.

**رنګېدونکے**:-(ر+ن+ګې+دو+ن+کے)[اپ.مف.مذ.ج:رنګېدونکي.مؤ: رنګېدؤنکې] رنګ کېدونکے.رنګ ورکولے کېدونکے روغن یا پالش

ورکولے کېدونکے.

**رنګین**:- (ر+ن+ګی+ن) [اپ. ص. مذ.] رنګین. رنګدار. ښائسته.

**رنګین**:-(ر+ن+ګي+ن) [فاتر. ص. مذ. مو: رنګینه] (۱) رنګینه. رنګدار (۲) رنګ په رنګ (۳) چې ګلکاري پرې شوے وي. مجازاً خوندناک. ډولے ښائسته.

آفـــرین دې پـــه وئیلـــو شـــه خوشـــحاله
پـه بیـاض بانـدې عجـب شـعر رنـګ ږدې

___**داستانه**:-اص.خوش بیانه.ښکلې ښکلې خبرې کوونکے.مجلس ارا.

___**زبان**:- چې بیان او خبرې ئې خوږې او ښې وي. خوږ ژبے.

___**کېدل**:- اص .رنګدار کېدل. رنګ اخېستل.

تـور لېمۀ مې د فراق په ژړا سپین شو
دوباره د زړۀ په وینو ښکې رنګین شو رحمٰن بابا

___**مزاج**:- اص (۱) خوش طبع. خنده رویه. خوشحال ارواحه.(۲) عیاش طبع. عیش خوښوونکے.

___**مضمون (ښکل)**:- اص ښکلے مضمون لیکل. زړه راښکونکے. دمینې محبت د ذکر نه ډک.

چې رنګین رنګین مضمون پرې ښکلے نۀ وي
څــۀ پــکار دے د بیــاض ورق رنـګین رحمٰن بابا

**رنګینه**:-(ر+ن+ګي+نَ+ه) [اپ.ص.مؤ.ج: رنګینې](۱) رنګ والا. رنګدار. رنګ شوے (۲) ډولي. ښائسته. خوندناکه.

رنګینه جـامې بـه واغوندم حبیبه
ځان به ستا د بورجلونو قلندر کړم خواجه محمد بنګش

چــې تمــام د خپــل ځیګــر پــه وینــو رنــګ شــو
د رحمٰــن خبـــرې ځکـــه رنګینـــه شـــوې

دا رنګینـــې معنٰـــي چیـــرې دي خوشـــحال
چـــې دا درومـــي لکـــه ګـــل پـــه بیـــاض ســـتا

**رنګیني**:-(ر+ن+ګي+نې) [اس ص. مؤ. ج. رنګینی]رنګین توب. رنګین والے.خوندرنګ. خوږ والے. شوخي. ښۀ ډول

**رنه**:- (ر+ نَ) [ق: پ.اس. مؤ. ج: رنې]. درې ګوتېزه پټې.

**رو**:-(ر+ و). فا. اس. مخ. څهره. (۲) طرف. رخ.

___**به صحت**:-[فاتر. صف.مذ.مؤ.روبه صحتې. ج مؤ: روبه صحتې]چې په جوړېدو راغلے وي. د مرض نه په ښه کېدو. ځنې وخت د فارسۍ د "به" په ځاے د پښتو "په" هم استعمالېږي.

___**داد**:-(رو+دا+د)[فا.اس.مذ.ج:روداد ونه]حال احوال.کیفیت.قیمت. واقعه.

___**رعایت**:- (رو + رَ + عا + یت) لحاظ. پاس. طرفداري.

___**ریا**:-(رو+ر+ یا) [اپ.اس] رو رعایت. لحاظ. خیال.

بــت پرســت وائـــي حمیـــد و هغـــه کـــس تـــه
چـــې بنګـــي کـــوي د خـــداے پـــه دوریـــا کښـــې

___**سیاه**:- (رو+س+یا+ (ه) ) [فا.ص] (۱) چې مخ ئې توروي. تور مخے. (۲) مخ تورن.(۳) بدنام. تهمتي.

که په خیر د آئینې مخ رونړے غواړې
پــــه ابــــرو د عــــاجزۍ شه روسیاه حمید

___**سیاهه کېدل**:- (۱) مخ توربدل. شرمنده کېدل. (۲) ګناهګار کېدل.

___**سیاهي**:- (۱) مخ توربدۀ. بدنامي. شرمندګي.

___**شناس**:-(۱)د مخ پېژندوکے. واقف. پېژندګلو متعارف. (۲) هغه سړے چې د مخ په کتو دزړه حال معلوموه وي. یا هغه سړے چې د مخ په کتو د چاحسب نسب معلوموله شي. قافیه شناس.

___**ګردان**: -(رو+ګـَ+ر+دا+ن)[فاتر.صف.مذ.مو.روګردانه.ج:روګردانې]. مخ ګردوونکے. مخ اړوونکے. خبره یا حکم نه منونکے. نافرمان.

له خالقه روګردانه شوې و مخلوق ته
بیا د ځـان تـه عـاقل وائې نامعقوله رحمٰن بابا

___**ګردانه کېدل**:- مخ ګرځول. مخ اړول. حکم نه منل. نافرمانه کېدل.

___**ګرداني**: - (رو+ګ+ر+دا+ن+ي)ف. تر:(۱) مخ ګرځېدنه. مخ اړونه. (۲) د خبرې یا د حکم نه مخ اړونه. نافرماني.

___**ګرداني کول**:- (فا.تر.مص لا مخ ګرځول. مخ اړول. حکم یا خبره نۀ منل.

___**نما**:-(رو+ن+ما)[فا.ص].(۱)مخ ښونکے.څرګند.(۲)دمخ د ښورلو انعام. رونمایي.

که جمال راته ښکاره کا زۀ به ورکړم
دا ګـتـلـې دنیـــا واړه رونـمـا خوشحال

___**نما کېدل**:- (فاتر. س .لا مخ ښودل. مخامخ کېدل. ښکاره کېدل.

___**نمای**:- (رو+ن+ما+ئ + ي) [فاتر. خالص. مو. ج. رونما یا نې](۱) مخ ښودنه. مخ ښکاره کونه.(۲) د څۀ څیز په اول ځل څرګندونه.

___**نمای کول**:- (۱) مخ څرګندول. مخ ښکاره کول.(۲) د څۀ څیز په اول ځل ښکاره کول. په اول ځل د ښکاره کولو رسم ادا کول.

___**نمای ورکول**:- (۱) د ناوې د مخ په اول ځل د کتلو په وخت څۀ روپۍ ورکول.

___**ئے زمین**:-(ماتر.اس) د زمکې مخ ___په___ د زمکې په مخ. د پاسه. په ټوله زمکه.

**رو**:-(رو ) [اپ.ص] (صحیح ورو په قلاره:-په مزه (تګ یا کار(۲) داوچت یا په زوره د اواز ضد. چې اواز په زوره نۀ وي.

___**کول**:-اص.وروکول. تیزي نه کول. د ګاړي یا د اس وغېره سورلۍ رفتار کمول.

___**کېدل**:- اص .وروکېدل.رفتار سستول.

**رو**:- (رو+رو) [اپ.ص] (صحیح: ورو ورو)(۱) په قلاره قلاره. په مزه مزه تګ یا کار(۲) په کم اوچت اواز (خبرې) داد چت او دلوړ اواز ضد

**رو**:- (رو) [اپ.اس.مذ.] (۱) لاره. مخه(۲) یوه مشهوره لوبه چې اینده ورته وائي. (۳) داوبو چله یا بهېدنه. په سمندر کښې داوبو چلند یا بهېدنه.

___**برابرول**:- لار سمه ول په سمه لار لګول.

رو مې بـرابـر کـړې په کوڅه د صادقانو
تښتم له کاذبه چې قریب دے و شېطان ته حافظ

___**موندل**:- (۱) لار موندل. مخه موندل(۲) د څۀ کار یا معاملے د پاره څۀ ګنجائش موندل.

___**نیول**:- (رو+ نې+ ؤ+ ل) لار نیول. لار اخستل.

زۀ حـــافظ بـــه ورســـم د یـــار تـــر ســـیمه
کـــه روســـم د مصـــطفٰی پـــه ســـیره نیســـم

___**ورکول**:-لار ورکول. مخه ورکول.(۲) دوتو یا مخکښې تللو د پاره چاته لاره پرېښودل.

___**دزړه رونه ورکول**:- مخ د زړۀ په حال څوک نه خبرول.

**روا**:- (ر + وا) [ق: پ.اس.مؤ.ج: رواګانې] د ورا یا اورا مقلب ورا. اورا جنج.

**روا**: (ر+ وا) [فا.ص]. جائز. حلال.

چې مې وینې د ګوګل خورې
وینـــې کلـــه دي روا خوشحال

____ **کول**:-اص.(۱) جائز کول. حلال گرځول(۲) جائز کارکول. صحيح کار کول. (۳) پوره کول. ترسره کول.

که روا که خون خوردن د عاشقانو
څوک وتړے شي د خورانو له صلاح     رحمٰن بابا

کـه رحمٰـن پـه عاشـقی کښـې آرام غـواړي
دغـــه واړه نـــاروا کـــا روا نـــهٔ دا

پـه رقيـب بـه ئـې بـې تبغـه مـرگ روا شـي
کـه دلبـره د خوشـحال مقصـود روا شـي

____ **کېدل**:-اص.(۱) جائز کېدل.حلال کېدل.(۲) وخت کېدل. لکه مازيگر روا دے يعني د مازيگر د لمونځ وخت شوے دے.

____ **ناروا**:- اص. جائز ناجائز. حلال حرام.

پــه روا نـا روا کله پوهېږي
و چارپائي ته څهٔ روا څهٔ ناروا     رحمٰن بابا

**روا**:-(ر+وا) لاحقه. د فارسی. په ترکيبونو کښې استعمالېږي. لکه حاجت روا. شرمانروا.

**روابط**:-(ر+ وا+ ب+ ط)و ____ رابطه.

**روارو**:-(ر+واَ+ر+و) [ف.تر.مذ. ج: روا روؤنه]. پرله پسې تلنه. وراندې روستو تلنه. روانه رواني.لويه لاره ده چلېږي.روا رو (خيال بخاري)

**رواج**:-(رِ+وا + ج) [پ.اِس.مذ.ج: رواجؤنه] رسم . دور دستور . قاعده. چاله.

د رواج او رسم عس مــدام نهٔ وي
لکه عمر چې مدام دے د اخلاص     رحمٰن بابا

____ **گرځېدل**: – د ستور يا قاعده گرځېدل. معمول گرځېدل.

____ **موندل**: –اص.يو کار يا خبره په عام اولس کښې خورېدل يا جاري کېدل او د خلقو پرې باندې عمل کول. رسم يا دستور گرځېدل.

____ **ورکول**:- اص.رسم يا دستور کول. معمول گرځول څهٔ کار يا عمل په اولس کښې خورول.

____ **نه باهر**: – هغه کار چې رواج د ستورئې نهٔ وي. بې دوره (کار) بې لارې (کار) رواج____

**د (ياله)____ نه وتل**:- (۱) د دود دستورنه وتل. رواج نه پاتې کېدل. د عام دور دستورنه خلاف کار کول. خلاف قاعده کار کول.

**له____ نه وتل**:-د رواج يا دستور نه خلاف کار کول. بې رواجه. بې دستوره کار کول. بې لارې کار کول.

**رواجول**:-(رِ+وا+ جَ + ؤ + ل) [پ.مص مت] رواج ورکول. جاري کول.

**رواجي**:-(رِ+وا+جِي) اص](۱) د رواج او دود دستور مطابق. رسمي چې رواج ئې موندلے وي.(۲) محض د رسم پوره کولو په غرض.

**رواجېدل**:-(ر+ وا+جې+د+ ل) [پ.مص لا] رواج موندل. جاري کېدل.

**رواج**:-(ر+ وا+ ج) [ع.اِس.مذ] نمر پريواته مهال. مابنام.

**روادار**:- (روا+دا+ر) [فا. اِس ص. مذ. مؤ: وا رواداره ج: رواداري]د يو کار کوونکے يا جائز گرځوونکے.

د قصدمنو تـه کاتهٔ زما په قصد کا
د وژومې روادار شي دربغه دربغه     خوشحال

____ **کېدل**:- اص. جائز گرځېدل

د قصدمنو ته کاتهٔ زما په قصد کا
د وژومې روادار شي دربغه دربغه     خوشحال

**رواداري**:-(ر+وا+دا+رِي) [اِس.مؤ]. رعايت. رواکوونه. په رعايت سره د يو کار جائز کول. د بل د جذباتو يا عقيدو مخالفت نهٔ کول. لحاظ پاس کول.

**رواش**:-(ر+وا+ش) [ق:پ.اِس.مذ] رش يو بوټے چې جرړې ئې د جلابو د پاره استعمالېږي. (ار:ريونه چيني)

**رواشه ډوډۍ**:-(ر+وا+ش+ړو+ډ+ي) [ق: پ.اِس. مؤ]نرۍ پخه ډوډۍ. چپاتي پاستے.

**رواق**:-(ر+وا+ق يا رِ+وا+ق) [ع.اِس.مذ](۱)د کور د ور مخې ته چچه. د تنبومخې ته چچه. (۲) شاميانه (ديوې ستنې) (۳) محل يا لوړ عمارت چې لويو لويوستنو د پاسه جوړ شوي وي.

**روان**:-(ر+وا+ن)[پ.اِس.مذ. (مؤ.وا. روانه.ج: رواني](۱)د ولاړ ضد. په قدمونو. په تگ. (۲) جاري. چلند. بهېدونکے. بهاند.

خپلې جـونـگړې تــه ورځـم په چگو ستر گو روان
زړهٔ سترے نهٔ يم خو ضمير دے زما سترے نهٔ شي     پرېشان

هسې زر زر دا شيرين عمر تېرېږي
لکـه بهـر چې بهـېږي روان زر زر     رحمٰن بابا

____ **کار کښې اړيکه راوستل**:- په روان کار کښې خرابي پيدا کول. روان کار بندول.

____ **کال**:- کوم کال چې شورو (شروع) شوے وي اولا خلاص شوے نهٔ وي. لکه په روان کال کښې يا د روان کال په فلاني تاريخ روان.

**په ____ کار کښې خنډ اچول**:- په روان کار کښې خرابي پيدا کول. روان کار بندول.

**روانگي**:-(ر+وا+ن+گ+ي) (۱) روانه کېدل. روانېدنه. د سکون نه په حرکت کښې راتلل.(۲) د گاډي وغېره د روانېدو وخت.

**روانول**:- (ر+ وا+ ن+ و + ل) [پ.مص مت]. (۱) استول. لېږل.(۲) دولاړې نه په حرکت کښې راوستونکے(۳) جاري کوونکے. شروع کوونکے.

**روانه**:- (ر+ وا + ن+ه)+ه [پ (ظفر). اِس.مؤ] راهداري. پاسپورټ.

**روانه**:- (ر+ وا+ ن+ه) د روان مؤنث.

____ **مياشت**:- هغه مياشت چې شورو (شروع) شوي وي او لا خلاصه شوي نهٔ وي. لکه په روانه مياشت کښې. درواني مياشتې په فلانۍ ورځ.

**روانه**:- (رَ+ وا + نَ) (صف) (۱) په روانۍ سره. (۲) بې د هجانه.

____ **کول**:- و ____ روانول.

____ **کېدل**:- و ____ روانېدل.

____ **لوستل**:- روان لوستل.

____ **رواني**:-(رَ+وا+نَ + رَ + واَ + نِي) روا رو. چلنده. چې روان وي. اجرا.

**رواني**:-(ر+وا+نِي) [پ.ص.مؤ](۳) چلند. په حرکت کښې.اجرا.(۲)هوار لوستلے کېدنه د شعر يا نثر. صفت. چې هوارې د نښتو لوستلے کېدے شي.

شپه او وورځ عاشقان زغلي ايستاد نهٔ کا
د عشق لار مـــدام روانـــه رواني ده     رحمت رادي

**روانېدل**:-(ر+وا+نے+د+ل) [پ.مص لا]. تلل.چلند کول.د ولاړې نه په حرکت کښې راتلل.

خاونـده خېر اوکړې په کومه لار روانه شوله
خواره قسمته معلومېږي چې پښېمانه شوله     پرېشان خټک

**روانېدنه**:- (ر+ وا+نے+د+نَ) [پ.حمص]. روانېدهٔ. تلنه.

**روانېدونکے**:-(ر+ وا+ نے+ دو+ن+ کَے) [پ.مف.مذ.وا.ج: روانېدونکي مؤ: روانېدؤنکې]. تلونکے د ولاړې نه په حرکت کښې راتلونکے.

**روانېده**:- (ر+وا+نے + د) [پ.حمص] و ____ روانېدنه.

**روايت**:- (ر+وا+ي+ت) [ع.اِس.مؤ.ج: روايتونه](۱) حديث. ذکر. بيان. (۲) قيصه. (۳) د يو عالم لیکلې فتوی. داورېدو يوه خبره. د بل د خبرې نقل. د بل د خلې خبره.

که ژوندون د عاشقانو په وصال وي
زۀ مهجور یـم په دغه روایت مرے    رحمٰن بابا

____ **کول:** -(۱) حدیث بیانول.(۲) قصه یا واقعه بیانول.

**روب:** - (ر+ و+ ب) [ق.اس.مذ] اوبه.

**روباه:** -(ر+و+بَا+هَ) [فا.اسم مذکر](۱) لومبړ یا لومبړه. ترورې عموماً د چالاکي په مفهوم کښې استعمالېږي.

____ **بازي کول:** - لومبړ بازي کول. چل فریب کول. چل ول کول.

____ **ردي:** - اِص.لغ: د لومبړې چال. مکاري.

**روبرو:** - (ر+ و+ بَ+ر+ و) [فاتر] مخامخ. مخ په مخ.

**روبل:** - (رو+ بَ+ ل) [انګ.اس] د جرمن د ملک سکه.

**روبن:** -(رو+ب+ن) [پ (اَش) اس.مذ.ج: روبنونه] د بورقې نقاب. (په اصل کښې دروبند مخفف دے.

**روپاک:** - (رو+ پا+ ک) د مخ د پاکولو کپړه. تولیه.

**روپندے:** - (رو+ پَ+ ن+ دے) [ق.اِس.مذ.ج: روپندي] یو قسم کالے دے چې ښځې ئې په سینه لګوي.

**روپوش:** -(رو+ پو+ش) (۱) د مخ پټولو کپړه. په برقعه کښې هغه پرده چې زنانه پرې مخ پټوي.(۲) پټ شوے. هغه ملزم چې د ګرفتارۍ د ویرې پټ شوے وي.

____ **کېدل:** - پټېدل. د پولیس د ګرفتارۍ د ویرې پټېدل.

**رو پوشي:** -(ر+و+پ/و+ش+ي) [فاتر. مؤ.ج: روپوشۍ](۱) د روپوشۍ عمل. مخ پټول.(۲) پټېدل. د ګرفتارۍ د ویرې د ملزم پټېدل.

**روپۍ:** -(رو+پَ+ئي) [پ.ه: روپیه. وا.جمع.اس.مؤ](۱) یوه سکه چې سل پیسې په کښې وي. کرنسي نوټ ئې هم شته. (په روپۍ کښې شلور شپیته پیسې دي) (۲) د زنانه په جامه (خصوصاً) په لمن او ګریوان باندې ګنډلے شوے د روپۍ په شان ځلقېدونکے ټکئي.

چرګ په دوه پیسې حلال شي
بـاز پـه سل روپۍ مردار وي    رحمٰن بابا

____ **الوزول:** - و ____ نوستل.

____ **ایستل یا اباسل:** -د خزانې یا بینک نه روپۍ راخستل. د چیک په ذریعه د بینک نه روپۍ رایستل.

____ **پاشل:** -اص.ډیرې زیاتې روپۍ خرڅ کول.روپۍ نوستل. سخاوت کول.

____ **پرېښودل:** - د څۀ څیز په قیمت کښې کمے راوستل. داصل بیعې نه کم اخېستل د وصولي قابل رقم کښې کمے راوستل. رعایت کول. (دومره روپۍ مې ورته پرېښوې)روپۍ. ____ پیسه (یا پیسې)مال دولت. پیسې ټکې.

____ **ټیکرے هم نۀ ښکارېدل:** - روپۍ سپکه یا حقیره ګڼل. د روپۍ قدر نه کول. بد خرڅي کول.

____ **ډوبېدل:** -(۱) تاوان کول.نقصان کول. (۲) د وصولي قابلې روپۍ په لاس نه راتلل.

____ **نه ګڼل:** - روپۍ سپکه ګڼل. بد خرڅي کول. د پیسې پروا نه لرل.پیسه پیسه نه ګڼل.

____ **شیندل:** - و ____ روپۍ نوستل.

____ **کره کول:** - (۱) روپۍ ټنګول. کره کو ټه معلومول (۲) خپل قیمت وصولول. خپلې پیسې وصولول.

____ **ماتول:** - (۱) د روپۍ په بدل کښې پیسې اخستل. متل دے روپۍ چې ماته شي میراته شي.

____ **نښتل:** -(۱) په څۀ کاروبار کښې روپۍ یا سرمایه لګېدل (۲) د چانه (خپلې) روپۍ نه وصولېدل.

____ **نوستل:** - ډیرې زیاتې روپۍ خرڅ کول. روپۍ پاشل سخاوت کول. (۲) بې ځایه خرڅ کول. بد خرڅي کول. اصراف کول.

____ **ورلاندې کول:** -رشوت ورکول.د څۀ غرض دحاصلولو د پاره روپۍ ورکول. مال ورلاندې کول.

____ **(خپلې) راوښکل:** -د چا نه خپلې روپۍ په څۀ طریقه وصولول.

____ **شپاړس انې:** -یا په روپۍ کښې شپاړس انې. (۱) سل په سل. پوره په پوره. (۲) بالکل صحیح.

**روپکه:** - (رو+پ ک+ه) د روپۍ اسم تصغیر. د سپکوالي یا د حقارت په طور روپۍ ته وئیلے شي.

**روټ:** - (ر + و + ټ) [انګ.اس.مذ]. لاره. سړک. طریق. یوه لوبه.

**روټ:** - (ر+و+ټ) [انګ. مذکر] یو خاص قسم مېخ. چې د څوکې په ځاے پلنوالے لري.د اوسپنې دوه ټکړې پرې پیوند کولے شي.

____ **کول:** - د روټ په ذریعه پیوندول

**روټ:** -(رو+ټ)[ق.اس.مذ] یو قسم پلنه ډبله روټۍ. چې ښه سره پخه وي او غواړې اوګوره په کښې اچولې شوې وي. ککوړے. [اروټه :اوربشینه ډوډۍ ته هم وائي]

**روټاک:** -(رو+ټا+ ک) [ق: اِس.مذ (مؤ.وا: روټاکه ج: روټاکې] (۱) بې پروا. (۲) شوم

____ **توب:** -(رو+ټاک+تو+ب)[ق:اس.مذ] .(۱)روټاکوالے.بې پروائې .(۲)شومتیا.

____ **والے:** - (روټاک + وا + لَے) [ق: اِس.مذ]. و ____ روټاک توب.

**روټه:** -(رو + ټه) [پ.اِس.مؤ.ج: روټې] داوربشو غټه ډوډۍ.

خپله روټه په پردي دسترخوان مه ږده
د سر لاندې نصیحت د لقمان مه ږده    احمد دین طالب

**روټۍ:** - (رو+ ټَ+ ئي) [پ.اِس.مؤ]. ډوډۍ.

ګېـډه اوتره په پرې سره کلکه
د روټۍ طمع ومه کړه له فلکه    رحمٰن بابا

____ **پیدا کول:** - روزي پیدا کول. محنت مزدوري کول. کاروزګار کول.

____ **جامه:** - ډوډۍ جامه نان نفقه.

____ **ماتول:** - (۱) روټۍ ټکړے ټکړے کول.(۲) په اینګولي کښې د روټۍ ورې ورې ټکړې اچول.

____ **مېده کول:** - اِص.روټۍ خوړل. روټۍ چیچل.

چې روټۍ مېده کوې په شخوندې خو جوړ ئې
تـــرو خـــبرې کـــوې لـــواړې ولې    رحمٰن بابا

**په ____ جامه کار کول:** - هغه نوکر چې نغده تنخواه نۀ اخلي صرف په روټۍ او جامه کار کوي.

____ **خلاص:** - و ـ روټۍ غپ.روټۍ .سره روټۍ. (۱) د تازه پخې شوې روټۍ صد. چې وخت پرے تیر شوے وي. (۲) لړه بیعه. لکه متل څۀ ګوګوشتو خونۀ دے چې په سره روټۍ (یا ډوډۍ) به وشي.

____ **روټووالا:** - (روټۍ خرڅوونکے. تنور والا

____ **غپ:** -(روټي + غَ + پ) [پ.اس ص.مذ] ډوډۍ غرپ حریص. لالچي. هغه سړے چې بس ډوډۍ خوړلو ته ناست وي او نور څۀ کار کسب نۀ کوي.

**روټین:** - (ر+و+ټي+ن) [انګ.اس.مذ] روش. عامه طریقه. عام طریق د کار. عام دستور عمل.

**روجاتي:** - (رو+جا+تي) [ق.اس.مذ] روجتي/ روژتي. روژتے. روژه لرونکے. روژه دار

**روجه:** - (رو + جَه) [پ.اِس.مؤ.ج: روجې]. روژه.

**روچه**:- (رَو + چَ) [ق.اِس ص] یو قسم سره انګور

**روځ**:- (ر+و+ذ) ز [پ.اِس.مو.ج: روځې] (مع: ورځ) ورځ ____ روز

____ **اړول**:- اص.(۱) ورځ تېرول. (۲) وخت تېرول.

____ **په ورځ**:- اِص (۱) ورځ تر ورځ. ورځ تر ورځه. (۲) د یوې ورځې نه بله ورځ. د یوې ورځ په مقابله کښې ورپسې راتلونکې ورځ(لکه ورځ په ورځ حال خرابېدل).

____ **ترورځه**:- و ____ ورځ په ورځ

____ **تېرول**:-(۱) ورځې تیرول.د ورځې وخت تېرول. د سحر نه ماښام کول. (۲) وخت تیرول یا اړول.

____ **ښه کول**:- اص: ورځ ښه کول. وخت ښهٔ کول.

____ **ښه کېدل**:-اِص.ورځ ښهٔ کېدل. حالت ښهٔ کېدل. بخت راتلل.

____ **کېدل**:- اِص.ورځ کېدل. شپه تېرېدل. سحر کېدل.

____ **ګرځېدل**:- اِص .و ____ روځ بدېدل.

____ **بدېدل**:- اِص. ورځ بدلېدل ورځ ګرځېدل. خراب وخت راتلل. بخت خرابېدل.

____ **ګوډول**:- اِص. ورځ ګوډول. بیکاره ورځ تیرول. وخت اړول.

____ **نهٔ درلودل**:- اِص .ورځ نهٔ لرل. ښهٔ ورځ نهٔ لرل. تریخ ژوند تیرول.

____ **باړه**:- (روځ +یا+ړهٔ) [ق.اِس.مؤ] د اخبار پاڼه. د ورځې مزدوري.

____ **بالا**:-(روځ+یا+لا) [ق.ص]ورځبالا. ورځ ترورځ زیاتېدونکے.ځواني. ته اشاره ده.

____ **پازه**:- (روځ + پا + نې) [ق.اِس.مؤ] روزګار.

____ **پاڼه**:- (____ پا. ڼ . ړَن) [اخبار. روزنامه. هره ورځ وتونکے اخبار]

____ **نامه**:- اخبار. هره ورځ د تونکے اخبار. ورځنامه. ورځپاڼه.

____ **تېرے**:-(روځ+تې+ رے) [پ.اِس.مذ] ورځ تېرول.د ورځ ګزران.

____ **ګرزے**:- (روځ. ګ + ر + زے) [ق.اِس.مؤ] تیره ورځ. پرون.

**روځې**:- (ر + و + زے. صح.روځے) د روځ جمع. ورځې.

____ **اړول**:- (۱) وخت اړول. وخت تیرول. (۲) بیکاره وخت اړول.

____ **اوړېدل**:- وخت اوړېدل. وخت تېرېدل.

____ **شپې اړول**:- د عمر وخت تېرول.

____ **شپې تیرول**:- و ____ ورځې.

____ **شپې تیرېدے**:- وخت تیرېدهٔ وخت اوړېدهٔ.

**بدې ____ اخېستل**:-اِص (۱) په څهٔ مشکل کښې ګیرېدل. (۱) څهٔ ګرانه پیښېدل. (۲) د څهٔ ګرانې د پیښېدو په وجه غلط کارکول.

____ **کول**:- اِص فریاد کول. زاري کول.

**ورځې دبدې**:- په څهٔ بده وجه. د لاچارۍ نه. د څهٔ مصیبت یا ګرانۍ په وجه.

**روځې** ____ و ____ د هرې یوې ورځ. یو میه.

**روځې** ____ و ____ په هره ورځ. د هرې ورځې (مزدوري وغیره)

**روځې** ____ د ښې ____ په څهٔ ښه وجه (عموماً په نفي کښې استعمالېږي. یعني د بدلې ورځې) لکه د ښې ورځې نهٔ یم راغلے. د ____ دبدې ورځې.

**ښې ____ راتلل**:- اِص.ښه وخت راتلل. حالت ښه کېدل.

**روح**:-(رو+ح) [ع.اِس.مؤ.ج: روحونه](۱) ساه.اروا. دم(۲) د قرانِ پاک یو نوم(۳) عطر. نچوړ. خلاصه.

ستا له دم سره همدم دے زما روح
بې لـه تا برهم درهم دے زما روح خوشحال

____ **وباسل یا ایستل**:- اص.و ____ روح اخېستل.

____ **اچول**:- اص.ساه اچول. ژوندے کول.

____ **اخېستل**:- اص،روح ایستل . مړ کول. ژوند ختمول.

____ **الوتل**:- اص.(۱) ساه وتل. د وجود نه د روح وتل. مړکېدل. ژوند ختمېدل. (۲) د چانه ډیر ویرېدل. د چارعب غالبه کېدل. ویرې اخېستل. رنګ زیړېدل.

____ **پرور**:-(روح.پ+ر+و+ر) [صف. مذ. مؤ. رح پروره.ج.روح پرورې]. د روح پالنه کوونکے. خوشحاله کوونکے.

____ **پوکل**:- اص.شاه اچول. ژوند اچول. ژوندے کول.

____ **تازه کول**: هغه کارکول چې روح پرې خوشحالېږي. مجازاً موسیقي اورېدل یا خوشبوی بویول. د ګلونو په چمن کښې ګرځېدل.

____ **تلل**:- اص. ماه وتل. ژوند ختمېدل

زوے د پلار په غېږ کښې پروت وي روح ئې لاړ شي
د قضـــا عـــــلاج پـــــه مـــور و پـــه پلار نهٔ شي رحمٰن بابا

____ **راتلل**:- اص.(۱) ساه راتلل. د ژوند علامې څرګندېدل.(۲) د ویرې یا رعب ختمېدل.

____ **ښادَول**:- روح خوشحالول. زړهٔ خوشحالول.

____ **ښادیې**:-(روح+شوا یا خادے) [فا. پ تر. صف.ج. روح خادي]هغه کس چې دچا روح خوشحالوي.(دچا)زړهٔ خو شحالوونکے.(۲) موسیقارسازي.

____ **فرسا**:-(____ فَ+ر+یا)روح تباه کوونکے. ډیر زیات غم پیدا کوونکے.

____ **قبض کول**:- ساه ایستل. مړ کول.

____ **له تنه بیلېدل**:- اص.ساه ختل. مړکېدل.

چې ئې روح له تنه بېل شي
نــور پـرې ژاړي فـرزندان رحمٰن بابا

____ **له تنه جدا کېدل**:- اِص.مړکېدل. ساه وتل.

دا یار نهٔ دے چې هجران زما نه بېل کړ
دغـــه روح لـــه تنـــه شـهٔ جدا زما رحمٰن بابا

____ **بناتي**:-(روح +نَ+یا+ت+ي) د ونو بوټو روح. هغه روح چې په ونو بوټو کښې وي.

____ **ننبتل**:-اص.ساه ایسارېدل. داسې حالت چې ساه لاوتي نهٔ وي خووتو ته تیاره وي او ځنګدن اوړدشي.

____ **ننه ویستل**:- اص.ساه اچول. ژوندے کول.

څوک شي روح ننه ویستے پـه یوهٔ ماشي
ژوندے کړے د په روح تمام جهان دے رحمٰن بابا

____ **وتل**:-(۱) روح د بدن نه وتل. مړ کېدل. (۲) بې کچه ډېر ویرېدل.

____ **خبیثه**:- شیطاني روح ____ شیطان.

**روحاني**:-(رو+حا+ني) [ع.ص].(۱) د روح سره تعلق لرونکے خبرې. د روح متعلق. د اروا سره تعلق لرونکے.

**روحانیات**:-(رو+حا+ن+یا+ت) [ع.اِس ص.مذ]روح القدس.د حضرت جبرئیل لقب. امانت دارِ روح. پاک روح.

**روح القدس**:-(رو+ح+ل+ ق + د + س) [ع.اِس ص. مذ] و ____ روح الامین.

**روح الله**:-(رو+ح+ل+ لاه) [ع.اِس ص. مذ] د الله تعالیٰ روح د حضرت عیسیٰ علیه السلام لقب.

**روحے فِدَاکَ**:- د عربي جمله. چې د چا بزرګ یا مشرته داحترام او عزت په طور وئیلې شي.زما روح تر تا قربان شه. زما ځان ورنه قربان شه. قربان دې شم.

**روح**:- (ر+و+ح) [ئ.اِس.مذ]خوشبویه هوا. خوشبوداره هوا.

د خـلیـل مقا شفـاء علیـل وائي
د دوستانو صحبت روح ریحاني ده حافظ

**روخ**:- (رو + خ) [اپ.ص] (اصل.رخ) رخ. مخ. مقابله

ع تهٔ عاقل زهٔ دېوانه څهٔ مو روخ د ملګيري خوشحال

___ **کول**:- اص.مخ کول. مخامخ کېدل.

___ **کېدل**:- اص. مخ کېدل.

___ **نيول**:- اص. (۱) رخئ نيول. مخه نيول. (۲) مقابله کول.

**رود**:-(رو+د) [فا.اس.مذ.ج.رودونه] (۱) درياب.سيند (۲) وله.نهر.ندی. خوړ (۳) يو قسم ساز چې تارونه لري (۴) د کولمو نه جوړ شوے ژے يا جے. چې په سازونو کښې لګولے شي.

اود رود پـــه غـــاړه تـــړے تشناب مري
هر خيس په خسامت کښې خپل عادت کا خوشحال

په ژړا دې دواړه سترګې
دوه رودونـــه کـــه ذاهب حميد

___ **بهېدل**:- اص. درياب سيند يا واله بهېدل. مجازاً ډېرې زياتې اوبهٔ تلل.

هم پـه دا مې له چشمانو رود بهېږي
چې يادېږي مې قامت دلجوئ دستا رحمن بابا

___ **داوښکو**:-اص.د اوښکو سيند يا وله مجازاً ډېرې زياتې اوښکې

يو عاشق دې څوک راؤښائ په عشق کښې
چې ئې رود پـــه مخ د اوښکو روان نهٔ دے رحمن بابا

___ **روانېدل**:-اص.سيند ياوالهٔ بهېدل.ډېرې زياتې اوبهٔ راتلل يا رابهېدل.

چې دا ستا د خولو بوي راباندې راغے
د عطار پـــه مخ د اوښکو رود روان شو رحمن بابا

**په___ اوبه کول**:- اص سيند يا دولے نه اوبهٔ ورکول. تږي ته د سيند يا ولے نه اوبهٔ ورکول.

چې هـــر دم د الـعـطش نـــارې وهينه
په ساعت ئې د مقصود په رود اوبهٔ کړه خوشحال

**په___ لامبل**:- اص.سيند يا والهٔ کښې لامبل (يا غوپې وهل)

سپې چې اولامبي پـــه رود
لابد بوي شي دا دے دود خوشحال

___ **بار**:-(رو+د+با+ر) [فا.:اس.مذ.ج. رودبارونه] (۱) لوے درياب يا سيند (۲) درياب چې يوه وادۍ کښې بهېږي. (۳) د سيند يا د درياب جوړه کړې لار (۴) هغه ځاے چې په کښې ګڼې ولې يا خوړونه بهېږي-(۵) ابناے. ددوهٔ وچو يا ملکونو په مينځ کښې تنګ سمندر.

هغه ملک چې په کښې سيند د رود بار نهٔ وي
دهقـــانـــان بــــه ئې همه خـــانـــه خراب وي رحمن بابا

___ **خانه**:- د سيند د بهېدو لار.

___ **ګر**:- (رود+ګ+ر) [فاتر. اسم مذ. مؤ رودګره.ج. رودګرې] (۱) ساز غږوونکے. (۲) د سازونو دپاره د ژبې (جبې) تارونه جوړوونکے.

**روداد**:- (رو+دا+د) [فا.اس.مؤ] (۱) حالت.کيفيت.(۲) د مقدمې کاروای. (۳) د جلسې کاروای. (۴) د قصې واقعې بيان چې د چا په سر تېره شوې وي يا ئې ليدلې وي.

**رودل**:-(رو+و+ل) [اب.مص مت] (۱) د ماشوم دَ مور د تي نه پی. څښل.تے چوپل. (۲) مضل ريبل.

**رودلے**:- (رَو+د+لَے) [اپ.مف.مذ.ج. رودلي. مؤ رودلې] (۱) ريبلے (۲) د مور تے زبيښلے. د مور د تي نه پی. څښلے.

**رودنګ**:- (رَو + دَ + ن + ګ) [اق.حمص]. (۱) رودنه. د چوپلو طريقه يا عمل. (۲) يو بوټے چې جرړې ئې د جامو يا څهٔ بل څيز په رنګونو کښې پکارېږي.

**رودنه**:- (رَو+ د+ نَ+ه) [اپ.حمص] رودنګ. د تي د چوپلو طريقه يا عمل.

**رودونکے**:- (رو+ دو+ن +کَے) [اپ. فاع. مذ. ج. رودونکي مؤ: رودونکې] (۱) د مور د تي نه پی. څښونکے. (۲) فصل ريبونکے.

**رودونے**:- (رَو+ دو+نے) [اق.اس.مذ.و.ج: رودوني مؤ: رودونې]. هغه چيلے يا چيلۍ چې مورئې مړه وي.

**روده**:-(رَو+ دَه) [فا.اس.مؤ.ج: رودے] (۱) کلمه. غټه يا لويه کلمه (۲) د رباب يا د سرېندې د ژې تار.

**رودي**:-(رو+دي) [فا.ص] هغه زمکه چې د رود يعني سيند داوبو نه سيرابېږي.

**روډ**:-(رو + ډ) [انګ.اس.مذ.ج: روډونه] سړک. عامه لار. خصوصاً هغه لار چې ټانګې موټرې وغېره پرې تلے شي. لويه پخه لار (عموماً د سړکونو په نومونو کښې استعمالېږي.لکه مال روډ. جمال الدين افغاني روډ وغېره)

**روډه**:-(رو+ډ) [فا.اس.مو.ج: روډې] (۱) غټه کولمه روده. (۲) د بدن په څرمنه يا په سر کښې جمع شوې خيرې. ق

**روډه**:-(رو+ډ) اپ (ظفر) اس.مؤ.ج.روډه] (۱) ليارهـ.سړک.لار (۲) نخښه . علامت.

___ **مست**:-(رو+ډه+مَ+ص+ت) [ق.اس ص. مذ(مې. روډه مستهـ ج: روډه مستې] هغه سړے چې ډوډۍ پورې حيران وي او خبرې د مستۍ کوي. فاقه مست.

**روډے**:- (رو + ډ ے) [ق.ص] روډي. يو قسم ټوپک.

**روډي**:- [ق.ص] و ___ روړې.

**رور**:- (رو+ر) (صح: ورور) ټول الفاظ د ورور د لاندې و ګورئ.

چې ما پم د مينې پورې شو دا ځکه
ببل کړو لوښے يار همزولي رور زما علي خان

___ **او خور**:- مجازاً. لکه د ورو د خور ترلې. يعني کلک تړون لرونکے. کله ديووار کله د بل.

**روري خوري کول**:- د ورورا و خور په شان تعلق لرل. د ورور او خور فرائض او حقوق پوره کول. متل دے. وروري خوري به کوو خو حساب تر مينځه.

**روزنځاے**:- (رو + زن + زائے) [اپ.(ظفر).اس.مذ] روزنتوب.

**رورولي**:- (رو+ر+وا+لي) [اپ.اس.مؤ] وروروَلي.

**روري**:- (رو+ر+ي) [اپ.اس.مؤ] ورور ولي. عزيز ولي.

**روړه**:-(رو+ړَ) [اپ.ه.روړا. اس.مؤ.ج.روړې] دخښتې ، کاڼي يا د ګټې ټوټه.

**روړه**:-(رو+ړ+ه) [اپ.اس ص. مؤ ج: روړې]. (۱) سخت کلک شوے. کوکل اوچوے. خشک سالي.

بخت ئې نهٔ ده په دوستي کښې د دلبرو
که مې څو پکښې خواري او که روړه ده علي خان

___ **کول**:- سختول. کلکول. کوکله کول.

___ **کېدل**:- اص. سختېدل کلکېدل. کوکله کېدل. خشک سالي کېدل. بارانونه نه کېدل.

**روړه**:-(رو + ړَ) [ق.اس.مؤ] راړه. يو قسم ګډه وډه ډوډۍ. ګډ ګاډلے.

**روړۍ**:-(رو+ړ+ ی) اپ. ه. روړې. اس. مؤ] د ټکېدلي کاڼو ټکرې يا ټوټې چې سړک يا د فرش په پخولو کښې لاندې اچوي او ټکوي ئې. هغه واړه واړه مات کړې شوي کاڼي چې سړکونه پرې پخوي.

___ **ټکول**:- اص.کاڼي ټکول.

**روړې**:- (رو+ ړ+ ئی) [اس.مؤ] (۱) روړے. دسپي ژړا.- د سپي مسلسل اواز. (۲) واړهٔ واړهٔ مات شوي.کاڼي يا خښتې.

___ **وهل**:-اص.د سپي ژړل. د سپي مسلسل خاص اواز ويستل. روړې وهل. د سپي اوږدې اوږدې د ژړا په شان چغې ايستل.

**روړے**:- (رو + ړے) [اپ.اِس.ج] د سپي ژړا اوږدې اوږدې چغې ايستل.

____**وهل**:- اِص.د سپي ژړا کول. د سپي اوږدې اوږدې چغې ايستل.

**روز**:- (رو + ز) [فا به اسم.](۱) عموماً د فارسي مرکبا تو کښې راځي.و____ ورځ يا ورځ (۲) مزدوري. د ورځې اجرت.

____**و شب**:- (رو + ز + شَ + ب)(۱) ورځ او شپه. شواروز. څليريشت گنټې (۲) هره روځ اوشپه . تل. مدام

____**افزون**:-(روز+اَ+ف+ زو+ن) [فا.ص. مذ]. ورځ په ورځ زياتېدونکے مخ په زياتي مخ په ترقي. او ودې.

____**الست**:- (رو+ز+اَ+ل+س+ت) [فاتر. مذ] هغه ورځ چې د بني ادم د پيدا کېدونه اول خدا ے پاک د ټولو روحونو نه تپوس کړے وۀ چې ايا زه ستاسو رب نۀ يم؟ نو ټولو روحونو ورله جواب ورکړے وۀ چې بلي! هو تۀ زمونږه رب ئې.

**روزانه**:-(رو + زا + نَه) [فا.مؤ](۱) هره ورځ. روزمره. همزوره.(۲) د هرې ورځې معاوضه. مزدوري.

____ **روز**:- (پ) (۱) هره ورځ. روزمره. (۲) مدام. همېشه. تل.

____**جزا**:-(رو+ ز+ جَ + زا) [فا. اس.مذ] د جزا يا دبدلې ورځ. د حساب کتاب ورځ. د قيامت ورځ. د حشر نشر ورځ.

____**حساب**:- (رو+ز+ح+سا+ب) [فا. اس.مذ] و____ روزجزا.

____ **شمار**:-(رو+ز+ش+ما+ر) د شمار يعني د حساب کتاب ورځ. د قيامت ورځ.

____ **نجات**:- (رو+زِ+ن+جا+ت) [فاتر. اس ]د نجات يعني د خلاصي ورځ. هغه ورځ چې د مخالف يا دښمن نه خلاصي موندلے شوې وي. د خلاصون ورځ.

____ **نامچه**:-(روز+نا+م+چَ) [فا.اس.مؤ](۱) هغه کتاب چې په کښې د هرې ورځې حال احوال ليکلے شي. روزنامه(۲) هغه کاته چې دکاندار په کښې د هرې ورځې حساب کتاب ليکي.وهی کاته(۳) هغه کتاب چې په کښې پټواريان د هرې ورځ کار درج کوي.(۴)د پوليس يا د تانې رجسټر چې په کښې ورځ د ورځې کاروای ليکلے شي. ډائري.

____ **نامچه نويس**:- سرکاري عهديدار چې هره ورځ پېښېدونکے خبرې به ئې ليکلے او بادشاه يا حکومت ته استولے روزانه تحريري خبراستونکے.

____ **نامه**:-(روز+نا+مَ) [فا.اس.مؤ. ج: روزنامے] (۱) ورځ پاڼه. هغه اخبار چې هره ورځ شائع کېږي. (۲) و____ روزنامچه.

____ **گار**:-(روز+گا+ر)[فا.اس.مذ](۱)کار روزگار.نوکري. کسب شغل. محنت. مزدوري.(۲) زمانه. دوران. وخت(۳) داشه درشه. تعلق . گذران.

کـه روزگار دې په جهان کښې عاشقي ده

ددې نور عالم روزگار څۀ روزگار نۀ دے خوشحال

د خوشحال خبره نغوږه پرۀ عمل کړه

تجـربـې دي ليـدلي ده روزگار حميد

____ **گار تلل**:-اِص. نوکري تلل د نوکري نه ايستلے کېدل. کار روزگار د لاس نه وتل. نوکري ختمېدل. کار يا مزدوري نۀ پاتې کېدل. بيکاره کېدل.

____ **گار ځلېدل**:-اص.(۱) په کار کاروبار کښې گټه وټه ښه کېدل (۲) بخت ښۀ کېدل. بخت بېداربدل. تجارت وغېره کښې ښه امدن کېدل.

____ **گارروانول**:- د امدن د پاره څۀ کار شورو کول.

____ **گار کول**:- اص .څۀ کار کسب يا نوکري کول.تجارت يا سودا گري کول. محنت مزدوري کول. کار روزگار کول.

____ **گار کېدل** (د چاسره)معامله کېدل. تعلق کېدل. واسطه پريوتل.

خپل ځانونه هوښياران گڼي نادان دي

خدا ے د مـا د هسې خلقو روزگار خوشحال

____ **گار لگېدل**:- اص.د امدن ذريعه پېدا کېدل. نوکري يا مزدوري لگېدل.

____په. ____لگېدل په څۀ کار يا نوکرۍ لگېدل.

____ **گار نۀ پاتې کېدل**:-د امدن ذريعه نۀ پاتې کېدل. د نوکرۍ يا مزدورۍ نه وتل. بې روزگاره کېدل. بې کاره کېدل.

**روزل**:– (رو + ز + ل) [اپ.مص مت] روزنه کول. تربيت کول. پالل.

**روزلے**:-(رو+ز+لَے)[اپ.مف.مذج:روزلي.مؤ:روزلې]تربيت شوے. پاللے شوے.

**روزمانه**:- (رو+ز+ما+ن+ه) [ق.اِس.مؤ] لنگون. گونډ. د څناورو د بچي راوړو وخت

**روزن**:- (رو+ز+ن) [ف.اس.مذ.ج:روزنونه] (۱) کړکۍ. برۍ. (۲) په ديوال کښې سورے. چې اورې پورې په کښې ليدلے شي.

**روزنتون**:-(رو+ز+ن+تو+ن) [ق.اِس.مذ] د روزنې ځاے. د تربيت ورکولو ځاے. د پاللو او پرورش ځاے.

**روزنگ**:- (رو + ز + ن + گ) [ق.حمص]. روزنه. تربيت پرورش. پالنه.

**روزنه**:- (رو + ز + نَ) [اپ.اس.مؤ]پالنه. تربيت. پرورش

____**کول**:- اِص.تربيت ورکول. پرورش کول. پالنه کول. پالل.

____**کېدل**:-اِص.تربيت ورکولے کېدل. پاللے کېدل. پرورش کېدل.

**روزونکے**:- (رو+زو+ن+کَے) [اپ.فاع.مذ.ج: روزونکي مؤ: روزونکې]: روزونے تربيت کوونکے. پرورش کوونکے. پالونکے.

**روزونے**:-(رو+زو+ نے) [اپ.فاع.مذ.ج: روزوني مؤ: روزونې] و____روزونکے.

**روژه**:- (رو+ژ+ه) [اپ.اس.مؤ.ج: روژې] او. روژه روژه. د سحر چر بانگ نه تر ماښامه (د ماښام د نمانځه تر بانگ) پورې د اسلامي شريعت مطابق د خوراک څښاک او کوروالي وغېره نه ځان ساتل. (نور الفاظ د روژه تر لاندې وگورئ)

زۀ حېران دا ستا د روزو پـه تـور خال يم

کافر څشه کله سجده کا په محراب کښې محراب

**روزه**:-(رو + زَه) [اپ.اس.مؤ.ج: روزې] : وروزه يا وروځه. روځه د سترگو د کوغالي د پاسه ويښتۀ.

**روزي**:-(رو+زي) [اپ.اِس.مؤ]. (۱) ډوډۍ، روزق، خوراکه (۲) نصيب. قسمت.

له قسمته به نۀ لږ نۀ به څۀ زيات شي

ښـۀ روزي چې زما نۀ ده نۀ ئې خورم خوشحال

____**بندول**:-د چا دروزۍ سبب ختمول. د چا کار يا مزدوري بندول.

____ **پېدا کول**:- خپل رزق يا خوراک څښکاک پېدا کول.کار روزگار کول. خواري مزدوري کول.

____ **خلاصېدل يا تمامېدل**:- نوره روزي نه پاتے کېدل. د مرگ وخت راتلل. مرگ راتلل. مړکېدل.

____ **خور**:- اص. روزي خوړونکے. خوراک خوړونکے.

____**رسان**:- روزي رسوونکے. رزق ورکوونکے. رازق. الله پاک.

څوک شي رزق هـر مخلـوق ته رسولے

دے د هر يو مخلوق روزي رسان دے رحمٰن بابا

____ **کول**:- اِص.نصيب کول. ورکوله.

چې روزي ئې شه سادت شي ستا له تيغه

احتياج ئې پـه چشمه د حيوان څـۀ دے رحمٰن بابا

____ **کېدل**:- اِص.نصيب کېدل. قسمت کېدل.

زۀ يـو هسـې يـار لـرم کـه مـې روزي شـي

کـه صـفت ئـې درتـه وکـړم وبرېـږدي

___ **لګېدل**:- کار روزګار لګېدل. نوکري یا مزدوري لګېدل.

___ **مخکښې دے ورپسې**:- هغه سړے چې د روزي، په لټون کښې ځاے په ځاے ګرځي. روزي، (کار روزګار) پسې سروهلے بر وهلے ځاے په ځاے ګرځېدل.

___ **مقررول**:- خرځ خوراک مقررول. د خرځ خوراک وغېره دپاره څۀ رقم مقررول.

___ **ورکول**:- اِص.رزق ورکول. خوراکه ورکول.

___ **وهلے**:- بد نصیبي چې روزي، پسې ډغرې خوري. هغه کس چې روزي، پسې سروهلے بروهلے ګرځي.

**په روزي، پسې ټکرې خوړل یا ډغرې خوړل**:- د روزي، په لټون کښې یو ځاے بل ځاے ګرځېدل. د نوکري یا مزدوري، په لټون کښې سرګردانه ګرځېدل.روزي ___ په روزي، حیران (یا حریان) هغه سړے چې روزي نه مومي. خوار۔ غریب. نادار.

**روزینه**:-(رو+زي+ن+ه)[پ.اِس.مؤ.ج: روزینې]د ورځې خوراک یا خواړه. ورځ۔ د ورځ خرځ. دورځې خرځ یا مزدوري.

**روژاتے**:-(رو+ژا+تَے) [پ.اِس ص. مذ.ج: روژاتي]روژاتیان (مؤ + وا: روژاتې. ج: روژاتیانې) روژه دار. هغه سړے چې روژه ئې وي۔روژتي.

**روژتي**:- (رو + ژ + تَي) [پ. اِس ص. مذج: روژتیان]روژه دار. روژاتے -

روژتي پــه خـــلورم پهر افطار که
تۀ څلور ځایه طعام په هر پهر خوري رحمٰن بابا

**روژه**:- (رو + ژَ یا ځَ) [پ.اِس. مؤ.ج: روژے]روزه. روجه

___ **خوړل**:- اِص.روژه نۀ نیول.

___ **ماتول**:-اِص.(۱) د روژه ماتې په وخت څۀ خوړل څښل. افطار کول.(۲) د روژې په وخت کښې خوراک څښاک کول یا بل څۀ داسې کار کول چې روژه پاتې نه شي. اصلي وخت مابنام نه مخکښې روژه ماتول(۳) بندیز یا پرهیز ماتول.

___ **ماتېدل**:- اِص.څۀ داسې کار کېدل چې په هغې روژه ماته شي. په روژه کښې د روژه ماتې د وخت نه اول څۀ خوړل څښل یا څۀ داسې کار کول چې هغه د شریعت د حکم نه خلاف وي او روژه پرې قائمه نۀ شي پاتې کېدے.

___ **مشغولول**:-د روژې په وخت کښې څۀ داسې لوبه وغېره کول چې د روژې وخت پرې تیر شي. د روژې وخت تیرول یا اړول.

___ **نیول**:- اِص.روژه ساتل.د مقرر وخت دننه نۀ څۀ خوړل څښل او نۀ څۀ داسې کار کول چې روژه پرې ماتېږي.

___ **د خبرو**:-(مزاقاً) خبرې نۀ کول. چپ پاتې کېدل. په ځنو قومونو کښې د چپ پاتې کېدو روژه هم نیوے شي.

**د روژې میاشت**:-(۱) هغه میاشت چې مسلمانان په کښې روژې نیسي۔ درمضان المبارک میاشت.( ۲) نوې میاشت۔ هلال چې ورپسې د روژو نیولو میاشت شورو کېږي.

**روژې ___ اوړېدل**:- (په چا)بالغ اودس کېدل. دومره عمر ته رسېدل چې روژې نیول پرې فرض شي.

**روژے**:- (د روژه . جمع)روژې اخستے دے. روژې په مخه کړے دے. د هغه کس په حقله (طنزاً) وئیلے شي څوک چې د روژې په وجه د غصې یا د ضد څۀ خبره اوکړي. یا څۀ غلط کار اوکړي.

**روژه خور**:- (روژه+خو+ر)اِپ تر.اس ص.مذ.مؤ.وا:روژه خوره ج. روژه خورې]. روژه خوړونکے هغه څوک چې روژه نۀ ساتي. روژه نۀ نیوؤنکے.

___ **دار**:-(روژۀ+دا+ر) [پ تر. اِس ص. مذ.ج: روژه داران. مؤ: وا: روژه داره. ج روژه دارې]. روژتے. روژه لرونکے. روژه نیوونکے هغه څوک چې روژه ئې وي.

___ **کالے**:-(روژه+کا+لَے) [پ.اِس ص .مذ] هغه څوک چې ټول کال روژه ساتي. صائم العمر.

___ **مات**:- (روژه+ما+ت) [پ.اِس.مؤ]. و ___ روژه ماتے

___ **ماتے** :-(روژه+ما+تَے)(۱) د خوراک څښکاک هغه څیز چې د روژې د ماتولو په وخت کښې خوړلے یا څښکلے شي. د روژې د ماتولو د پاره د خوراک څښکاک څیز۔ افطاري. (۲) د روژې د ماتولو کار یا رسم. (۳) د روژې ماتولو دپاره یو تقریب یا غنډه چې یاران دوستان په کښې را غونډتلے شي.افطار پارټي.

**روږد**:(رو+ژیاګ+د)[پ.اس.مذ(مؤ.وا:روږده.ج:روږدے].عادت.بلد.روږد. اموخته.

___ **توب**:- (روږد + تو + ب) [پ.اس.مذ]روږدوالے. بلدتیا. اموخته والے.

___ **والے**:- (روږد+وا+لَے) [پ. اِس مذ] و ___ روږ دتوب۔

___ **ول**:-(رو+ ژ یا ګ+دَ + وُ + لَ) [پ.مص مت] بلدول. اموخته کول. عادت کول.

___ **ونګ**:-(رو+ژ یا ګ+د+و+ن+ګ)[ق.حمص]روږدونه.اموخته کونه۔ بلَدونه. عادت کونه.

___ **ونه**:- (رو + ژ یا ګ + دَ + وُ + نَ) [پ.حمص]. و ___ روږ دونګ

___ **ونکے**:-(رو + ژ یا ګ + رَ + دو + ن + کَے) [پ.فاع. مذ. ج: روږ دوونکي. مؤ: روږدوونکې]. بلَدوونکے.اموخته کوونکے.عادت کوونکے.

___ **ے**:-(رو+ژ یا ګ+دَے) [پ.ص.مذ.ج: روږدي](۱) اموخته. عادت. بلد. عادتي (۲) ډاډه. زړور.

پــه سپین مخ ئي تـازه خـط نوے ټوکېږي
څۀ به زړۀ ورځني ژغورم روږدوے زاغ دے خوشحال

د دنیا په خوږو ږدي مچان ګوره
چې وهي ورپسې سر په دود ستنه حمید

___ **ېدل**:-(رو+ژیاګ+دے+د+ل) [پ.مص لا]. بلدېدل.اموخته کېدل. عادت کېدل.

___ **ېدنګ**:-(رو+ژیاګ+دے+د+ن+ګ)[ق.حمص].روږدېدنه.بلدېدنه. اموخته کېدنه. عادت کېدنه. روږدېده.

___ **ېدنه**:- (رو+ژیاګ+دې +د+ن+ه) [پ.حمص] و ___ روږدېدنګ

___ **وېدنکے**:(رو+ژیا+دے+دو+ن+کَے)[پ.مف.مذج:روږدېدونکي.مؤ: روږدېدونکې] بلَدېدونکے. اموخته کېدونکے. عادت کېدونکے.

___ **ېده**:- (رو+ژ یا ګ + دې + د+ه) [پ.حمص]. و ___ روږ دېدنګ

**روږه**:- (رو + ژَ یا ګَ)[پ.اِس.مؤ.ج: روږې]اوربه. ورژه. (اردو پسو)

**روږي بوږي**:-(رو+ژي یا ګي+بو+ژي یا ګي) [پ.ص] ذرې ذرې، ټکرې ټکرې۔ ریچې ریچې۔

**روږ بوږ کول**:- اِص.ذرې ذرې کول. ریچې ریچې کول

درسته شپه دې په کوڅه کښې مرم له سوځه
لاس مې مات شۀ که مې نۀ کړې روږي بوږي خوشحال

**روږي بوږي کېدل**:- اِص.ذرې ذرې کېدل. ریچې ریچې کېدل۔

**رؤسا**:-(ر+او+سا)[ع.ج.و:رئیس]درئیس جمع ___ ډیر رئیسان.مشران. سرداران. شته من خلق.

**روسَپي**:-(رو+س+پ+سَي) لولي۔ بدلنه لنډۍ. [ف.اَس.مؤ]. اصلاً رو سپېدو یعني سپین مخے. اوس طنزاً تورمخې اوبد چلنې ښځې ته وئیلے کېږي.

لولئ. دلمنه. لنډۍ.

**روست**:- (رو + س + ت) [پ. ص. مذ(مؤ: روسته. ج روستي)صح: وروست]
وروست. خوړين زوړ. خراب. اصلاً جامه يا بل څيز چې د زړېدو په وجه بوده شوے وي او په لږ زور شيلېږي. يا څېري کېږي.

**روستا**:- (رو+س+تا) [فا. مذ](۱) کلے. بانډه. کلي وال. بانډيچے.

**روستاړے**:- (رو+س+تا+ړے) [پ.اِس.مذ] دځناورو د لکۍ ريخ چيلغ. وروستاړے. د مچۍ.

**روستای**:- (رو+س+تا + ي) [فا.اِس.مذ]. (۱) کلي وال. بانډيچے.

دوستائي د شته نۀ وي رسېدلے
بېهوده وئيل د دشت کربلا کا خوشحال

**روستنے**:- رو + س + ت + نَے) [پ.اِس ص.مذ: ج: روستني مؤ: روستنۍ] چې روستو پاتې وي. شاتنے. اخرنے.وروستے. وروستنے. روستے.

**روستو**:- (رو + س + تو) [پ.ص](صح وروستو) [پ.ص]. وروسته. روسته. اخر شاته.

لکه روستو مقتديان وړاندې امام وي
هسې مــا تــــا پسې کـړې اقتدا! رحمٰن بابا

**روستوالے**:-(رو+س+ت +وا+لے) [پ.ص] زوړوالے. چې روست شوے وي. کمزورے. چې په لږ څۀ رژي يا شلېږي.

**روستول**:- (رو + س + تَ + ؤ + ل) [پ.مص متا]. (صح: ورستول وروستول. خرابول.

**روسته**:- (ر + س + تَ) [پ.ص]. و ـــ روستو.

**روستے**:- (ر + س + تَے) [پ.ص.مذ ج: روستي. مؤ روستۍ]. صح: وروستے) و ـــ روستنے.

**روستۍ خور**:- (ر + س + تَ + ئي + خو + ر) [پ.اِس.مؤ] دويمه خور د ربيع الثاني مياشت.

**روستيبل**:- (ر + س + تي + ب + ل) [ق.اِس. مذ]اوسترل. شا وروستو.

**روستېدل**:- (ر + وَ + س + تې + د + ل) [پ.مص/لا] (صح: ورستېدل) (۱) وروست کېدل. بوره کېدل. کمزورے کېدل.(۲) خرابېدل. گنده کېدل.

**روستيمبال**:-(رو+س + تي + م + با + ل) [.اِس.مذ]. وروستمبال روستيبل. په اخره کښې.

**روش**:- رَ + و + ش + يا دی ش) [فا. ص] طور طريقه چال.رواج.(۲) په چمن ياگلشن کښې د گرځېدو د پاره نرۍ لار.

په دوش د تښېدوني مرئ عشق ته
شېخانو پــه حلقه کښې ښارم څو حميد

ـــ **ايستل يا اباسل**:– لار ايستل طريقه يا دود جوړل نوې طريقه يا فېشن اختراع کول.

ـــ **خرابېدل**:-(۱) رواج يا طريقه خرابېدل.(۲) چال چلن خرابېدل. په بده لار روانېدل.

ـــ **دے**:- (۱) دود دے. دستور دے. قاعده ده.

**روشاني**:-(رو+ شا+ني)(۱) چې د رڼا سره تعلق لري.(۲) د بايزيد انصاري لقب روښاني.

**روشن**:-(رو+ش+ن) [فا.ص.مذ](۱) روښان.روڼا.ځلنده(۲) ښکاره.واضځ(۳) د بايزيد انصاري لقب (رښان)

هر يو گل دا ستا د بــاغ روشن تر دې تر چراغ
روشن تر دې تر چراغ ، هر يو گل دا ستا د باغ رحمٰن بابا

ــــ **جمال**:- اِص.ډېر ښائسته. ډېر ښکلے

ــــ **دل**:- هغه کس چې زړۀ ئې روښانه وي. رڼا زړے ـرڼ زړے.

پــه روشن دلــو بــه رڼا وي قبر باغ د جنت
سياه کاران به تل تر تله د تورم تم ته پرېږي حافظ

ــــ **طبع**:- (۱) هغه کس چې طبع ئې روښانه وي. خوش طبيعت. خنده رويه.

ـــــ **کول**: – روښانه کېدل.

صرف ئې دولت په نوم تمام کړ
روشن مــردانــو چراغ د نام کړ سعيد خټک

**روښانه کول**: – روښانه کول.

**روشنای**:- (رو + ش + نا + ئيی)[فا.اِس.مؤ]. (۱)ليکلوسياهي (۲)رڼا. روشني.

**روشندان**:- (روشن+دا+ن) [فا.اِس.مذ.ج: روشندانونه]د رڼا دپاره يو قسم کړکۍ. عموماً د ديوال په برسر کښې جوړولے شي.

ـــ **دماغ**:-(رو شن+د+ ما+غ) [فا. ص]. (۱) د روښان دماغ خاوند عقلمند. هوښيار. په خبره زر پوهېدونکے. (۱) نورا (مجازاً)

ـــ **ضمير**:-(روشن+ض+مي+ر)[فا.ص]. چې دننه زړۀ ئې روښانه وي. داسې هوښيار چې د بل چا د زړۀ په خبره پوه شي.

**روشني طبع**:- (رو+ش+ن +ی+ي+طَ+ بَ) [فاتر. مؤ](۱) د طبيعت رڼا. خوش طبعي (۲) په څۀ کار کښې مهارت.

**روشه**:-(رو+ ش+ه) [پ. (مر+ گن) اس .مؤ. ج: روشې]حلوا. وريشه. روښه.

ـــ **وال**:- (روشه+وا+ل) [پ.(مر) .اس فاع. مذ. ج روشه والان]روشه جوړوونکے يا خرښونکے حلوای. روښه وال. روښای.

**روشے بوټے**: – (رو+ شَے+ بو+ ټے) [ق. اِس.مذ]د رشقے قسم يو واښۀ چې په غرۀ کښې پيدا کېږي.

**روښان**:- (رو+ شا يا خا+ ن) [پ.ص.مذ (مؤ+ دا: روښانه. ج: روښانې](۱) روڼ. ځلنده.(۲) د بايزيد انصاري لقب.

د هــر لـــور وتــه ئې مخ دې شائے نشته
پرې روښان دے شش جهت او بحر و بر رحمت داوي

څو به پټ له مرگه گرځې سپينه ږيره
په روښانه ورځ به غلا کوې تر کومه رحمٰن بابا

ـــ **کول**:-اِص.روښان يا روښانه کول.ځلقول.رڼول.روښانول رڼول.(۲) واضحه کول. ښکاره کول.(۳) صفا کول. رښتياو ته راويستل (لکه خبره)

تــاريــکۍ د معصيت راځــخــه واخلې
د طاعت په روښنائۍ مې زړۀ روښان کړې رحمٰن
بابا

ـــ **يا روښانه کېدل**:-اِص .(۱) ځلېدل. روڼېدل. روښانېدل.(۲) واضحه کېدل. (۳) صفا کېدل. رښتياو ته راوتل.

**روښانه ورځ**:- رڼا ورځ. دورځې په رڼا کښې.

عاشقي ننگ و نــاموس دې وبله لرې
په روښانه ورځ به څرنگ څوک غلا کا رحمٰن بابا

**روښان توب**:-(روښان+تو+ب) [پ.اِس.مذ] روښانتيا.روښان والے. ځلند توب.

**روښانتيا**:- (روښان+ت+يا) [پ.اِس.مؤ] و ـــ روښان توب.

**روښانول**:-(رو+شايا خا+ن+و+لِ) [پ.مص متا]. روښان کول. روڼول.

**روښانونک**:-(ر+و+شايا خا+نَ+ؤ+ن+گ)[ق.حمص]روښانونه.روښانکونه روڼونه.

**روښانونه**:-(رو+شا يا خان+ن+ و+ نَه) [پ.حمص]. و ـــ روښانونګ.

**روښانوونکے** :-(رو+شايا خا+ن+وو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.ج.روښانوونکي.مؤ: روښانوونکې](۱)ځلندوونکے.روڼوونکے.(۲)صفاکوونکے.واضحه کوونکے.

**روښانېدل**:- (رو+ شا یا خا + ني+ د+ ل) [پ.مص لا]. روښانه کېدل. رونېدل. و ــــ روښان کېدل.

**روښانېدنګ**:(رو+شایاخا+ني+د+ن+ګ)[اَف:پ.(قاموس).حمص]روښانېدنه. ځلېنده. رونېدنه. روښانېدهٔ

**روښانېدنه**:-(رو+شا یا خا + ني + د +نَه) [پ.حمص]. و ــــ روښانېدنګ

**روښانېدونکے**:(رو+شایاخا+ني+دو+ن+کَے)[پ.مف.مذ.وا.ج:روښانېدونکي.مؤ: روښانېدونکې]ځلیندونکے.روښانه کېدونکے. رونېدونکے.

**روښانېده**:- (رو+ شا یا خا + ني + ده) [پ. حمص]. و ــــ روښانېدنګ

**روښنايئ**:- (رو+ش یا خ + نا +ئي )[پ. اس. مؤ]. روشنای. رڼا.

روښنايئ مې د چشمانو ستا دیدن دے
په دا کور کښې بل چراغ و مشال نشته    رحمٰن بابا

ــــ **حاصلول**:- اِص .رڼا موندل.

روښنايئ مې په طلب کښې شوه حاصله
شپه او ورځ لکه آفتاب پــه لار روان یم    رحمٰن بابا

ــــ **کول**:- اِص.رڼا کول. رڼای کول. رڼا ورکول. روښانه کول.

لکــه شمع لــه مــا درومي
په بل ځاے به روښنايئ که    خوشحال

ــــ **کېدل**:- اِص.رڼا کېدل.

**روښه**:-(رو+ ش یا خه) [پ.اِس.مؤ] و ــــ روشه

ــــ **وال**:- (روښه+وا+ل) [پ.اِس ص. مذ]. روښې.روشه وال.

ــــ **ونه**:- (روښه + ؤ +نَه) [ق.اِس.مؤ]. د کېلې ونه.

**روضه**:- (رو+ ضَه) [ع.اس . مؤ.ج: روضې](۱) باغ. ګلشن .ګلستان. (۲)مزار. زیارت. خصوصاً هغه قبر چې ګنبت پرې جوړ شوے وي.

که ستا روضه نصیب د لید نهٔ وے
حاصله مې کوم دے د دید له توریو    سعید خټک

ــــ **خوان**:- هغه سړے چې په منبر باندې داهل بیتو د مصیبتونو حال بیانوي.

ــــ **درضوان**:- جنت . بهشت.

چې اشنايئ ستــا لــه دره ار دیواره
انتظار ئې په روضه د رضوان څهٔ دے    رحمٰن بابا

ــــ **خواني**:- په منبر باندې داهل بیتو د مصیبتونو بیان کول.

**روعا**:- (رو + عا) [پ.اِس.مذ] د یو ګل نوم. نمر پرست

**روغ**:-(رو + غ) [پ.اس.مذ (مؤ. وا: روغه. ج: روغې](۱)جوړ.د تندرست (۲)ټول. همه. سالم.(۳)رغ شوے. جوړ شوے.(۴)صحیح.درست. خبره ـروغه وه.

رنځــوران کــه کاروبــار نــهٔ کــه معــذور دي
روغ سړے بــه ولې نــهٔ کا خپل روزګار
د صــورت پــه لطافــت بــې مثلــه روغــې
پـــه قامـــت تـــر ســـر وې ســـرفرازې

د رحمٰن و تـوعان ته ګوره همره ناز کړه
چې د اوسپنو روغ نهٔ دے آدم زاد دے    رحمٰن بابا

ــــ **تلل**:- (د چانه)د چانه بې د څهٔ خوړ یا زخم تلل. بچ پاتې کېدل. (عموماً په نفي کښې استعمالېږي)

ــــ **سلامت**:- (رو غ + س + لا+ مَ + ت) [روغ رمټ. بالکل روغ]

روغ سلامت زړهٔ په غمزه غوځ که سیا چشمې
نشته صلابت د غــوښې هېڅ تېره سکین ته    حافظ

ــــ **کول**:- رغول. جوړول. سازول.

ــــ **ارتاو**:- (رو غ+ اَ+ ر+ تا + و) [ق. اِس. مذ]. پارا شوټ.هغه چترۍ چې هوا بازان پرې د جهاز نه زمکې ته رادانګي.

ــــ **بړ**:-(روغ +بَ+ړ) [پ.اِس.نې]. جوړتازه روغ جوړ.ګړه بړه. د حال احوال تپوس پوښتنه.

ــــ **بړ کول**:- اِص .جوړتازه کول. روغ جوړ کول د حال احوال پوښتنه کول. ګړه بړه کول. بړه ګړه کول.

ــــ **بړه کېدل**:-اِص .روغ جوړ کېدل. جوړ تازه کېدل ګړه بړه کېدل.

ــــ **توب**:- (روغ + تو + ب) [پ.اِس.مذ]. روغتیا . تندرستي. صحت مندي.

ــــ **تون**:- (روغ + تو + ن) [ق.اِس.مذ]. د څیز و نو د رغولو یا جوړو لو ځاے. کارخانه.

ــــ **تیا**:- (روغ + ت + یا) [پ.اِس.مؤ] و ــــ روغتوب

ــــ **جوړ**:-(رو+غ+ جو+ړ) [پ.اِس ص.مذ (مؤ.وا: روغه جوړه ج:روغې جوړې] روغ رمټ بالکل جوړ. تندست، روغ رمټ. ښهٔ په صحت کښې.

ــــ **اوسې یا اوسئ**: د عائیه جمله عموماً چې رخصتیږي نو دغه جمله وائي.

ــــ **کول**:- اِص.و ــــ رو غبړ کول.

ــــ **کېدل**:- اِص.    و ــــ روغبر کېدل.

ــــ **نیت**:- درست نیت. چې په نیت کښې څهٔ درغلي نهٔ وي. ښه اراده.

ــــ **تپوس کول**:- اِص د حال احوال پوښتنه کول.

ــــ **رمټ**:-(روغ+رَ+م+ټ) [پ.اِس مذ (مؤ.وا:روغه رمټه ج: روغې رمټې]روغ جوړ . صحیح سلامت. صحت مند روغ رمټے.

ــــ **رمے**:-(روغ+ر+مے) [ق.اَس ص. مذ (مؤ: وا.روغه رمۍ ج: روغې رمۍ] و ــــ روغ رمټ.

ــــ **صورت**:-(روغ+ صو+رَ+ ت)[پ.ص.مذ]صحت مند بدن. تندرست ځان.

روغ صورت لکه بادشاه صحت ئې تخت دے
نــاست په تخت مې شاه جهان ولیدے دربغه    رحمٰن بابا

ــــ **لیک**:- (روغ +لي+ ک) [ق.اِس.مذ]. صلح نامه. راضي نامه.

ــــ **لیونے**:-( روغ+لي+وَ+نَے) [پ.ص.مذ.ج:روغ لیوني]نیم روغ.مجذوب شاتنه.(۲) هغه سړے چې ښه روغ وي خود ځان نه ئې د څهٔ مقصد د پاره لیونے جوړ کړے وي.

خبــردار وربانــدې روغ لېــوني نــهٔ دے
پــه خوشــحال کښــې چــې پراتــهٔ دي دا حالونــه

**روغن**:-(رو+غَ+ن) [فا.اس. مذ].(۱) تیل. غوړي. (۲) د څهٔ څیز غوړ عرق یا غوړې اوبهٔ . (۳) وارنش. پالش.

ــــ **اوباسل یا ایستل**:- اِص .تیل ویستل. عرق ویستل.

ــــ **کول**:- اِص.وارنش کول. پالش کول.

ــــ **کېدل**:- اِص.وارنش کېدل. پالش کېدل.

ــــ **لګول**:- اِص.په غوړو پستو او د خوشامندو په خبرو بل غلول یا تیرایستل. غوړول.

ــــ **بلسان**:- اف تر ــــ اس جمع د یو وړوکي شان بوټي نه ایستل شوي تیل چې په داروکښې استعمالېږي. دا بوټے د نکریزو بوټے هومره وي ځکه ځني خلق ورته په غلطي سره د نکریزو ربحرتې تیل هم وائي.

ــــ **دار**:- (روغن+ دا +ر)[فا. اس ص. مذ]روغن لرونکے. هغه شے چې روغن پرې ختے وي. هغه لوښے چې وارنش پرې شوے وي. روغني.

ــــ **داغ**:- (روغن+دا+غ)[پ (ظفر).اِس. مذ]کړځو.کړځي.ارکاره. فرائي پان.

ــــ **فروش**:- [فاتر. مذ.مؤ: فروشه ج: فروشې] هغه سړے چې غواړې یا تیل: بناتاتی) خرڅه وي. تیل یا غوړي خرڅوونکے.

ــــ **کني**:- [فاتر. اس. جمع] د کونځلو، تیل

**ـــــ گل**:- (روغن+گ+ل) [فا. اس ص. مذ]د گلابو د گلونو تیل چې مالش دپاره د دارو په طور استعمالولے شي.

**روغني**: (رو+غَ+ني) [فا. ص]غوړ یا غوړ شوے. چې تیل یا غوړي پرې لګېدلي وي یا په کښې وي. خوړکړے وارنش کړے. پالش کړے.

**ــــــ روټی**:-(روغنی+رو+ ټی) [پ.اس ص. مؤ]غوړه روټۍ. هغه ډوډۍ چې د پخولو په وخت کښې په کښې غوړي ګډ کړے شوے وي. پراټه

**روغنیات**:- (رو+غَ+ن+یا+ت) [فا.اس ص.ج]غوړلرونکي څیزونه. لکه غوړي تیل وغېره۔

**روغ نیتي**:- (رو+غ+ني َ+تي) [پ.ص.مؤ] ښۀ نیت. ښۀ اراده. خیر خواهي۔

**روغوالے**:- (رو +غ+وا +لَے) [پ.اس.مذ]. صحت. روغتیا. تندرستي۔

**روغول**:-(رو+غ+ و+ ل) [پ.مص مت](۱) جوړول. صحت ورکول.(۲) جوړه راوستل. د دوۀ په مینځ کښې صلح کول. (۳) رغول. درستول.

د شـــونـــډو دارو ورکړه که ئې تۀ په روغول ئې
په سترګو ئې علاج کړې خو به مري بیمار د زړۀ خوشحال

**رغونګ**:- (رو+غ +و+ن+ګ) [ق.حمص].روغونه.رغونه.درستونه.

**روغونه**:- (رو + غ + ؤ + نَه) [پ.حمص] و ـــــ روغونګ

**روغوونکے**:(رو+غ+وو+ن+کَے)[پ.فا.عمذ.ج:روغوونکي.مؤ:روغوونکې] رغوونکے. جوړوونکے

**روغه**:-(رو+ غَه) [پ.ا.س.مؤ. ج: روغے] (۱) جوړه. صلح(۲) د روغ تانیث (د ګوره روغ)

**ـــــ کول**:- اص.(۱) جوړه کول. صلح کول.(۲) جوړه راوستل. پخلا کول.

**ـــــ کېدل**:- اص.جوړه کېدل. صلح کېدل. پخلا کېدل.

**ـــــ وال**:- (روغه + وا + ل) [پ.اس ص. مذ]صلح کوونکے. جوړه کوونکے . پخلا کوونکے. مینځګړے.

**روغه**:- (رو + غَه) [ق. اس.مذ] سلامت. روغتیا.

**روغ کېدل**:-[پ.مص/لا].(۱) صحت موندل. جوړېدل. (۲) رغېدل. درستېدل.

ستا د زلفو مار خوړلي بـه روغ نۀ شي
که افسون د مسیحا وربانديَ پُو کړي رحمٰن بابا

**روغېدنګ**:-(رو+غي+د+ن+ګ)[ق.حمص]روغېدنه.روغېدۀ.روغېدل. رغېدل.

**روغېدنه**:- (رو+ غي+ د+ نَه) [پ.حمص].و ـــــ روغېدنګ

**روغېــــدونکے**:(رو + غـــي+ دو+ ن+ کَـــے) [پ.مف.مذ.ج:روغېـــدونکي.مؤ: روغېـــدونکې] (۱)صـــحتموندونکے.جوړېدونکے.(۲)رغېـــدونکے درستېدونکے.

**روغېدۀ**:- (رو + غي + دۀ) [پ.حمص]. و ـــــ روغېدنګ

**روک**:- (رو + ک) [ق.اس.مذ (مؤ.وا: روکه ج: روکې]. روغه. صفا. بې عېبه. بې وټه. واضح. څرګند.

**ــــ ویل**:- اص. صفا ویل. سپینه خبره کول. څرګند ویل.

**روک**:-(رو+ کَ) [ق.اس.مذ] پتلون

**روک**:- (ر+و+ ک) [ق.اس.مذ] ورک . غائب۔

**ـــــ پوک**:- (رو+ک+پو+ک) [ق.اس ص .مذ]رک پک. بالکل صاف او واضح . څرګند.

**ـــــ سرے**:- (رو+ک+س+رِے) [پ.اس ص. مذ]. صفا سرے. سپین سرے چې درغلي په کښې نۀ وي.

**روکو**:- (رو + کو) [ق.اَس.مذ]د مشر ورور لقب.

**ـــــ خبره**:-(رو+کَه + خَ + ي+ رهَ) [پ.ص] روغه خبره. صفا او څرګنده خبره. کره خبره. سپینه خبره. واضح خبره.

**ـــــ روپۍ**:- (رو+کَ+رو + پَ + ئي) [پ.ص]نغده روپۍ. کره روپۍ.

**روکے**:-(رو+کَے)[پ.اس. مخفف. مذ] ورورکے. کشر ورور (دمینې کامه) وروکے.

**روګ**:- (رو + ګ) [ق.اس.مذ.ج: روګونه] دڅپلئی داش. د کمر بند پټئی

**روګ**:- (رو + ګ) [ه. اس. مذ](۱) مرض. بیماری. ناروغتیا. رنځ. ناجوړتیا (۲) جنجال. تکلیف. وبال.بلا.

**ـــــ لګول**:- اص.(۱) ځان په بلا اخته کول. ځان پسے څۀ جنجال لګول. څۀ بد عادت نیول. (۲) ځان په څۀ مرض اخته کول. ځان پورې څۀ رنځ لګول.

**روګه**:- (ر + و + ګَه) [پ.اس.مؤ.ج: روګے]اوربه. روزه.

**روګے**:- (رَو + ګے) [ق. اس.مذ]تنګه نرئ لاره. نرے تنګ رو.

**روګي**:- (رو+ ګي) [ه. ص.مذ]رنځور ـــــ ناجوړه. ناروغه. مریض په څۀ بد رنځ اخته.

**رول**:-(رو+ ل) [انګ *(Role)* . اس .مذ](۱) په ډرامه کښې یو کردار. دیوایکټر کار. (۲) منصبي کار. حواله کړے شوے کار۔

**ـــــ ادا کول**:-(۱) په ډرامه کښې دیو کردار کار کول. پارټ ادا کول(۲)په څۀ معامله یا کار کښې برخه اخېستل۔

**رول**:-(رو+ل) [انګ *(Roll)*.اس.مذ] (۱) د نومونو فهرست.(۲) د دفتر هغه فهرست چې په کښې دملازمانو د عهدو اوپه بېلو بېلو در جو کښې د ترقی په سلسله کښې نمبر وار نومونه درج وي.

**رول**:-(رو+ل)[انګ *(Rule)* .اس.مذ](۱)قاعده.اصول.قانون.ضابطه.د ستور. (۲) حکومت. فرمانروای(۳) کربنه چې د کاغذ په مخ راښکلې شوې وي.(۴) هغه وړه شان غونډه مهینه ډنډه چې د هغې په مدد متوازي کرښې راښکلے شي.

**رولر**:-(ر+و+لَ + ر) [انګ. اس.مذ]د اوسپنې هغه پلنه ګول پایه چې د زمکې (یا د سړک) د هوارولو د پاره پکارؤلے شي.

**رولنګ**: -(رو+ل+ن+ګ)[اَنګ.اس.مذ](۱)قطعي رائے.فیصله قانوني مثال. (۲) کرښه. د کرښې نخښه.

**رولنمبر**:-(رو+ل+نَ+م+بَ+ر)[اَنګ.اس.مذ]په امتحانونوکښې شاملېدونکي طالب علمانو د پاره سلسله وار نمبر چې په پرچه باندې د نوم په ځائے لیکلے شي.

**روم**:-(رو+م)[.اس معرفه.مذ]اصلاً په یورپ کښې هغه ملک چې دارالسلطنت ئې روم *(ROME)* وۀ۔ پخوا دلته د رومیانو حکومت وۀ. دا سلطنت وروستو دوه برخې شو. د مشرقي برخې دارالخلافه قسطنطنیه وه. مشرقي خلقو دې ته درومن ایمپائر په ځائے رومي حکومت وئیل. چې ایشیائ کوچک نوم هم روم و ګر ځېدو چې اوس په کښې د ترکو حکومت دے.

ملک د روم ئې لا په زړۀ وۀ
ورتـــه هېـــڅ وۀ اصفـهـان رحمت داوي

**روم**:- (رو + م) [انګ *(ROOM)* . اس. مؤ]کمره. کوټه.

**روم میټ**:-(روم+م+یي+ټ) [انګ تر]د کمرې ملګرے. په کمره کښې یو ځائے استوګن

**رومال**:-(رو+ما+ل) [پ.اس.مذ.ج: رومالونه]د کپړې یوه څلور ګوټه ټوټه چې مخ لاس او پوزه صفا کولو د پاره استعمالولے شي.

ستا په ګوتو کشیده رومال چې راغے
زۀ له مینې مړم ستا رومال په سترګو خوشحال

**رومان**:-(رو+ما+ن) [ار.اس. مذ]اَنګ: رومانس. د ب هغه برخه چې په کښې د قصو په شکل کښې د ژوند هغه واقعات بیانولے شي چې هغه د حقیقي ژوند د عام او همروزه وا قعاتو نه بیل څۀ وي. فرضي قصې.د عشق او دمینې واقعات او قیصې.

**رومانس**:-(ر+و+ما+ن+س)[اَنگ .اس.مذ] روايت. قصه. افسانه خصوصاً هغه افسانه يا ناول چې په کښې د تخيل او جذباتو نه کار اخستے شوے وي.

**روماني**:-(رو+ما+ نِي) [ار.ص.][(۱) رومان سره متعلق د رومان هغه قصه يا افسانه وغيره چې تعلق ئې رومان يعني مينې او عشق سره وي. (۲) رومان خوښوونکے. خيالي او فرضي دنيا کښې او سېدونکے.

**روماني**:-(ر+و+ما+نَي) [اپ.صف](د رومانس نه وتے دے) (۱) هغه قصه يا افسانه وغيره چې رومانس سره تعلق لري. خيالي.(۲) هغه قصه يا ناول وغيره چې په کښې د عشق او مينې واقعات وي.

**رومن**:-(رو+م+ن)[اَنگ.ص](۱) د روما يا اټلي اوسېدونکے.(۲) د اردو يا پښتو هغه ليک چې په رومن (انگريزي) حرفونو کښې وليکلے شي.

**رومن**:-(ر+و+م+ن)(۱) دروم (يورپ) د خلقو سره تعلق.(۲) د روم د خلقو د رسم الخط توري يا حُروف. په دغه حرفونو کښې ليک.

**ـــــ کيتهلک**:- (رومن+کې+ ته + ل + ک) [اَنگ. اس ص]د عيسايانو يوه فرقه چې هغوي پاپاے روم (پوپ) د حضرت عيسیٰ عليه السلام جانشين مني او پيروي ئې کوي.

**رومي**:-(رو+مِي)[ع.ص](۱)داوسېدونکےدايشياےکوچک اوسېدونکے.(۲) د حضرت مولانا روم لقب.

**رون**:- (رو + ن) [اپ (ظفر) .اس.مذ] ورون. پتون

**روند**:- (ر+و+ن+د) [اپ.ص.مذ (مؤ.وا: رونده. ج: روندي] روان. جاري.

**رونده**؛-(ر+و+ن+دهَ) اپ (اورک).ص.مؤ]عموماً زمکې سره استعمالېږي. لکه رېونده زمکه. سلامي زمکه. ځوبړ.

**رونده**:- (ر+ون+ دهَ) [ف.صف] تلونکے. هغه چې روان وي. روان سړے.

**ړوندے**:- (ر+ؤ+ن+دَے) [ق.اَس ص. مذ. ج: روندي. مؤ: روندی](۱) هغه ماشوم چې په دستونو روان وي.(۲) روان. جاري.

**ـــــ کېدل**:- اِص. په دستونو کېدل.

**روند**:-(رو+ن+ډ) [اپ.اَنگ: راونډ. َس.مذ](۱) د پولېس يا د څوکيدار د شپې گشت. (۲) د باکسنگ وغيره لوبې يوه برخه. (۳) د ډاکټر په خپلو مريضانو يو گشت کولو د ډاکټر په مريضا نو گرځېدل.(۴) د ټوپکو چلولو يو وار. يو باړ۔

**ـــــ کول**:- اِص.(۱) گشت کول. د شپې څوکيدارۍ د پاره گرځېدل.(۲) د ډاکټر په مريضانو گرځېدل.(۳) د يو افسر په خپلو ماتحتانو گشت کول.

**روڼ**:-(رو+ن+ړ) [ق.اس.مذ](۱) وار. ځل. (۲) مرتب. منظم. په قاعده (۳) د توپې يو قسم گوله.

**ـــــ کول**:- اِص.په ترتيب کول. منظم کول.

**په ـــــ اېښودل**:- اِص . په ترتيب اېښودل.

**په ـــــ کار کول**:-اِص. په خپل وار کار کول. په قاعده کار کول.

**روڼ**:-(رو+ن - ړ) [اپ.اس.مذ (مؤ.وا:روڼه. ج: روڼې](۱) روښان. ځلند. (۲) واضحه. صفا.(۳) صفا۔بې گونجو (تندے)

**روڼا**:- (رو+ن+را) [اپ.اَس.مؤ.وه.ج: روڼاوي]رڼا. رڼای.

**روڼای**:- (رو+ن+را+ ئي) [اپ.اِس.مؤ]روڼا. رڼای. روشني.

**روڼکه**:- (رو+ن+ړ+ گه) [ق: اِس مؤ. ج: روڼکې] نيم سرے. د نيم سر درد.

**روڼکے**:- (رو+ن +ړ+ کے) [ق.اس.مذ] (۱) د غوړ شاتنې هډوکے. (۲) د روڼا اسم تصغير۔روښانه۔ تتہ شان رڼا. رڼکے۔

**روڼ کېيځ**:- (رو+ڼ+ک +يې+ځ) [ق.اس ص.مذ]چرنانگ وخت. صبح صادق.

**روڼل**:- (رو + ن + ړ + ل) [اپ.مص مت]روڼول. روښانه کول.

**روڼلے**:-(رو+ن+ړ+لے) [اپ.مف.مذ.ج: روڼلي.مؤ: روڼلې]. روښانه کړے.

**روڼول**:-(رو+ن +ړ+ؤ+ل) [اپ.مص مت](۱) روښانه کول. ځلقول.(۲) شپه وينبه تېرول. (۳) خبره فيصله کول.

عاشقان دې سترگې روڼې کا په عشق کښې
دا خــواب نــهٔ دے دا مــنزل دے د سېلاب رحمٰن بابا

**سترگې ـــــ**:- اِص .سترگې پرانستل.

**شپه ـــــ**:-اِص.تږوله شپه وينې پاتے کېدل.تږوله شپه عبادت کول.

يــوه شپه پــه طاعت نــهٔ شې روڼولے
هره شپه په مال و ملک پسې پاسبان ئې رحمٰن بابا

**روړول**:- (رَو+ن+ړ+ ؤ+ل) [ق.مصر مت] په تربيت کول. په قاعده کول.

**روړونگ**:- -(رو+ن+ړ+و+ن+گ)[ق.حمص]روړونه. په ترتيب کوونه. په قاعده کوونه.

**روڼونگ**:-(رو+ن+ړ+و+ن+گ) [ق.حمص](۱) روڼونه.روښانه کوونه.روڼونه. ځلقونه. (۲) شپه وينښه تېرونه. (۳) معامله صفا کونه.

**روڼونه**:- (رو+ ن + ړ+ و + نه) [اپ.حمص]و ـــ روڼونگ.

**روړونه**:- - (رَو+ ن +ړ+ ؤ + نَه) [ق. حمص]و ـــ روړونگ۔

**روڼوونکے**:(رو+ن+ړ+وو+ن+کَے)[اپ.فا ع.مذ.ج:روڼوونکي۔مؤ:روڼوونکې] روڼوونے. روښانه کوونکے. ځلقوونکے. رڼاوونکے.

**روړوونکے**:(رو+ن+ړ+وو+ن+کَے)[ق.فا .عمذ۔ج:روړوونکي.مؤ:روړوونکې] ترتيب ورکوونکے. په قاعده کوونکے.روړوولے. مرتب. منتظم .

**روڼوونے**:-(رو+ن+ړ+وو+ نے) [اپ.فاع.مذ.ج: روڼووني. مؤ: روڼوونې] و ـــ روڼوونکے.

**روړوونے**:-(رو+ن +ړ+ وو+نے) [ق.فاع.مذ.ج: روړووني. مؤ: رَوړوونې] و ـــ روړوونکے۔

**روڼه**:- (رو+نه)[ق.اس.مؤ. ج: روڼې] يو قسم شينکے دے چې په غرهٔ سمه هر چرته پېدا کېږي او د دوا په طور استعمالېږي. ثعلب مصري.

**روڼه سترگه**:- (رو+ن+نه+س+ت+ر+ گه) [ق.اس.مؤ]د سحر ستورے. د صبا سترگه.

**روڼے**:- (رو+ن +ړے) [ق.اس.مذ] صيقل.

**روڼې اوبه**:- (رو+نه+او+ به) [اپ.اس ص.مؤ]صفا اوبهٔ. رڼې اوبه.

**ـــــ اوښکې**:-(رو+نې+ او + ش يا خ + کې) [اپ. اس ص. مؤ.ج]رڼې اوښکې. صفا اوښکې۔

**تويول**:- اِص. رڼې اوښکې تويول. ژړل.

**روڼېدل**:-(رَو+نې+د+ل)[اپ.مص لا]روښانه کېدل.صفا کېدل.ځلقېدل. رڼېدل.

**روړېدل**:-(رَو+ن+ړي+د + ل) [ق.مص لا]په ترتيب کېدل. په قاعده کېدل.

**روڼېدنگ**:-(رو+نې+د+ن+گ) [ق.حمص]روڼېدنه. روښانه کېدنه. ځلقېدنه. صفا کېدنه. روڼېده.

**روړېدنگ**:-(رو+ن+ړي+د+ن+گ) [ق.حمص]َوړېدنه.په ترتيب کېدنه.په قاعده کېدنه. روړېده.

**روڼېدنه**:- (رو+ نې+ د + نَه) [اپ.حمص]و ـــ روڼېدنگ۔

**روړېدنه**:- (رو+نې+ د+ نَه) [ق.حمص] و ـــ روړېدنگ

**روڼېدونکے**:(رو+نې+دو+ن+کَے)[اپ.مف.مذ.ج:روڼېدونکي۔ مؤ:روڼېدونکې] روښانه کېدونکے.ځلقېدونکے.صاف کېدونکے. رڼېدونکے.

**رَوړېدونکے**:(رو+ن+ړي+دو+ن+کے)[ق.مف.مذ.ج:روړېدونکي.مؤ: روړېدونکې]په ترتيب کېدونکے. په قاعده کېدونکے.

**روڼېده**:- (رو+ن + ړې+ دهٔ) [اپ.حمص] و ـــ روڼېدنگ.

**روړېده**:- (رو+ن +ړي+ دهٔ) [ق.حمص] و ـــ رَوړېدنگ.

**رونق**:-(رو+ن+ق) [ع.ص.مذ](۱) ښائست. ښکلا. ځلا. (۲) گڼه گونه. خوند رنگ. (۳) تازگي. شگفتگي. (په مخ رونق راتلل).

دواړه کونه په طفیل د هغهٔ دي
مـرتب او مهیا پـــه ډیـر رونق     خوشحال

مجنون ښید غندې رونق د ګلستان شي
چې ئې ستا له غمه سر په پشت پائے وي     رحمٰن بابا

___ **افروز**:-[فاتر. مذ. مؤ. افروزه. ج. افروزې] رونق زیاتوونکے. ځلا. ښکلا. زیاتوونکے (د عزت د پاره د راتللو یا په مجلس کښې د شاملېدو د پاره استعمالېږي)

___ **افروزه کېدل**:-د مجلس وغېره خوند. رنګ ځلا ښکلا زیاتول مجازاً راتلل. تشریف راوړل.

___ **محفل**:- د مجلس رونق. هغه کس چې د مجلس خوند اوښکلا ئې زیاتېږي. د حجرې رونق. مجلس ارا سړے.

___ **راتلل**:- اص. ځلق یا ښکلا را پیدا کېدل. د رنګ راځلېدل. (۲) اباده بادي کېدل. ګڼه ګوڼه جوړېدل.

___ **کېدل**:- اص. ګڼه ګوڼه کېدل. خوند رنګ جوړېدل. اباده ابادي کېدل.

___ **موندل**: – اص. خوند رنګ موندل. ښائست موندل

تهٔ قادر پـــه قدرونو ئې مطلق
تحت و فوق لتا موندلے رونق     سعید

___ **کول**:- اص. خوند رنګ راوستل. ښائست او ترتیب ورکول.

بـــارې مـا رونـــق نسق د بندګی کړې
خداوند ته به خوار و ځار بې وقار نهٔ وم     حافظ

___ **ورکول**: –اص. (۱) (ت) ښائسته کول. جوړول. سنبالول. (۲) (لا) ډېر ښائسته ښکاریدل. ښکلا ښکاره کول.

**رونما**:- (رو+ن+ما) [فا. صفت] مخ ښکاره کونه.

___ **ورکول**:- اص. د مخ ښکاره کولو په بدل کښې څهٔ تحفه یا پیسې ورکول.

که جمال راته ښکاره کا زهٔ به ورکړم
دا ګټـــلي دنیـــــــا واړه رُونمـا     خوشحال

**رؤف**:-(ر+ؤ+ف) [ع. ص. مذ] ډېره مینه، محبت او شفقت کوونکے. د الله تعالیٰ یو صفتي نوم.

**روول**:-(ر+و+ؤ+ل) [پ. مص مت] ماشوم ته تي نه پی. ورکول. تے ورکول (دې مصدر سره "په" استعمالېږي لکه "په روول".

**روونه**:- (ر+و+و+نه) [پ. حمص ماشوم ته تي نه پی. ورکونه. تے ورکول.

**رووونکے**:- (ر+ و+ وو+ن+کَے) [پ. فاع. مذ. ج: رووونکي. مؤ: روونکې] ماشوم ته تي نه پی. ورکوونکے.

**رووے**:- (رو+وے) [ق. اَس. مذ] د روټۍ اېښودو کڅوړه.

**روویلے**:- (رو+وے+لَے) [پ. اِس. مذ. ج: روویلي مؤ: روویلۍ] او ___ روهېلے.

**روه**:-(رو+ ه) [پ. اِس. مذ] غر. غرئیزه علاقه . پښتو نخوا . د پښتنو د وطن پخوانے نوم. د پښتنو داستوګنې علاقې. هغه علاقې چې پښتانه پرې مېشته دي.

قـاصدان له روه نهٔ راځي مدت شو
سلام باد رارسوي منت ئې شم دے     هجري

**روهو**:- (رو+ هو) [ه. اِس. مذ] رَوو. یو قسم مهے یا کب.

**روهي**:- (رو+ هِي) [پ. اِس ص] (۱) د روه اوسېدونکے. د غرهٔ اوسېدونکے. (۲) پښتون. روهېلے.

**روهېدل**:- (رو+هې+ د+ ل) [پ. مص لا] (۱) روئېدل. خوله وهل. اېرې وهل. (۲) د ګېډو بزو د بچو د میاندو سره د یو ځائے کېدو په وخت شور زوږ کول.

**روهیلکهنډ**:-(ر+هِي+ل+کَه+ن+ډ) په شمالي هندوستان کښې یوه لویه علاقه چې پښتنو په کښې خپله باچاهي قائمه کړې وه. د روهیله د وطن د پښتنو ملک.

**روهیلے**:- (رو+هي+ لَے) [پ. اِس ص. مذ . ج: روهیلي. مؤ: روهېلۍ] (۱) د روه یا دغره اوسېدونکے روویلے. (۲) پښتون. (۳) مجازاً مسافر.

په امید د زلفو اوښتم په دام کښې
زوهېلے وم ستا د دل په هندو بار ګډ     رحمٰن بابا

**روئي**:- (رو + ئ) [پ. اِس] (۱) رو. مخ (۲) ملاحظه. واسطه. له مخه. (۳) وجه. سبب.

هر چې اووینې پـــه سترګو روئ د ستا
مخ ئې کوږ وي همېشه په سوئ دستا     رحمٰن بابا

___ **اچول**:-اص. د چا واسطه ورکول. روئي راوړل.

پرهار ژلے یم اوس مرمه د خدا ے روئ د ے
د زخمي زړهٔ مې مـــرهـــم کا یــاره لـږ لـږ     رحمت داوي

___ **پرېباسل**:- اص. مخ نته ایستل.

و ګرنګ وته په خپله ځان پرېباسي
چې د زړهٔ وته پرېباسي روئ د ستا     رحمٰن بابا

___ **راوړل**:- و ------- روئ اچول.

___ **زمین**:- د زمکې په مخ.

په روئے زمین ساوي سیال ګویا هېڅوک نهٔ ؤ
سکندر نـهٔ شـو په امان د بېلتانهٔ لاتا حسته     حافظ

___ **منل**:- اص. د چا واسطه قبلول یا منل.

___ **په خپل**:- اص په خپله واسطه. په خپله ملاحظه.

د بل کره چې ورشي په خپل روئے بندیان پرانزي
پـــه ځان باندې چې راشي کله روئے پېغمبر شته     خوشحال

**رؤیا**:-(ر+و+ء+یا) [ع. اِس. مذ] خوب. هغه شے چې په خوب کښې اولېدے شي.

**رویائ صادقه**:-(رو+یا+ئے+ صا+د+ قَ) [ع. اِس ص ج] رېښتونے خوب یا رېښتوني خوبونه. هغه خوب چې تعبیر ئې رښتیا و خیژي. (۲) الهامي خوب.

**روئیبار**:-(رو+ئي+با+ر) [پ. اِس. مذ. ج: روئیباران. مؤ: وا: روئیباره. ج: روئیبارې]. روئیبارانې] (۱) ریبار. قاصد (۲) د عاشق معشوقې تر مینځه پیغام رسوونکے. (۳) دریمګړے.

**روئیباري**:-(رو+ئي+با+رِي) [پ. اِس. مؤ] ریباري. قاصدي. پیغام ر سوونه. (۲) مینځګړے. دریمګړتوب. دلالي.

___ **کول**:- اص. قاصدي کول. ریباري کول. دلالي کول.

**رویت**:- (رو+ي+ت) [ع. اِس. مؤ] (۱) مخ ښکاره کېدل. لېدل. په نظر کښې راتلنه. (۲) دیدن. ننداره

___ **کېدل**:- اص. د نوې میاشت ښکاره کېدل. نوې میاشت لېدلے کېدل. (۲) نوې میاشت ختل.

___ **هلال**:-(رویت+ه+لا +ل) [ع. اِس ص] د نوې میاشت ښکاره کېدل. نوې میاشت په نظر راتلل نوې میاشت لېدلے کېدل.

___ **هلال کمېټي**:- (رویت هلال + کَ + مي + ټي) [اِس ص. مؤ] د علماؤ هغه جماعت یا غونډه چې د حکومت د طرف نه د نوې میاشت لیدو د پاره مقرره شوې وي او د هغوي فېصله حتمي وي.

**روئیدار**:-(رو+ ئي+ دا+ر) [فا. ص] (۱) مخ لرونکے. د مرتبې او عزت خاوند. (۲) مخوریز.

پـــه ځښتنو بـــانـــدې حکم کا مریونه
تر مېرمنو نه تل وینځې دي روئیدارې     خوشحال

___ **کول**:-د چا روئي درورل يا اچول.

که په روئ ورته تمام جهان روئيدار کړم
ستر ګې نـه پـورته کوي د ناز له خوابه رحمٰن بابا

**روئېدل**:- (رو+ئي+د+ل) [ق. مص مت]او ___ روهېدل.

**روئېدن**:- (رو+ئي+دَن) [ف.اص]توکېدل.د بوټي يا د ونبو لوئېدل.

روئيـرن د کـنبت آسان دي
پرورش ئي ډېر جنجال دے رحمٰن بابا

**روئ ريا**:-(رو+ئ+ر+يا) [پ.ص.مؤ](۱) لحاظ. رعايت. پره جنبه. طرفداري او ريا.(۲) رياکاري. ظاهري نمائش.

حق باطل کا باطل حق کا
پـــه سبب د روئ ريـــا رحمٰن بابا

**روئيمال**:-(ر+و+ئي+ما+ل) [پ. اِس.مذ]رومال.د مخ د پاکولو څلور ګوټيزه کپړه.

مخ روښي ده د عـــاشق پـــه خپـلـو اوښو
په دانهٔ شي چې ئې مړي په روئيمال څوک رحمٰن بابا

**روي**:- (رَ+وِي)هغه حرف(توری) چې د شعر په قافيه کښې د ټولو نه اخر ته راځي.

**روے**:- (ر+وے) [پ.اِس.مذ.ه.ج.رَوِي.مؤ.روې] (۱) بلا يوفرضي دويرې شے. (۲) حرص ناک. وږستر ګې. ارواوږے.

ښائسته کـــه په ښائست ملائکه وي
په وکښو د زړونو روي دي که نهٔ دي رحمٰن بابا

ظالمان په نور څهٔ هېڅ نهٔ دي راغلي
خـــو دنيا وتـــه خوښېږي لکه روي خوشحال

___**کېدل**:-اص.ارواوږے کېدل. وږ ستر ګې کېدل. حرص او لالچ کول.

**روي توب**:- (ر+وي+تو+ب) [پ.اِس.مذ] (۱) حرص. لالچ. ارواوږ توب. (۲) چالاکي.

.___**کول**:- اِص.(۱) حرص کول. لالچ کول. (۲) چالاکي کول.

**روېدل**:-(ر+وي+د+ل) [ق.مص لا ۱] جنګ کېدل. تکرار کېدل. خبره بيا بيا غښتلے کېدل. (۲) ماشوم ته پې ورکولے کېدل. پې رودلے کېدل.

**روېره**:- (ر+ وي+ره) [پ.اِس.مؤ.ج: روېرې]اورېره. د ورور لور.

**رويزه**:-(ر+وِ يِ+زه) [ق.اِس.مؤ]ورا. وربا نے. د ښځو هغه ټولے چې د واده (ياد کوژدن) په وخت کښې دناوې کره ځي.

**رويو**:- (رِ+وِيو) [انګ. اس. مذ] نظرثاني. دوباره کتل. په يو کتاب يا کلام باندې د خپل خيال اظهار کول. تبصره. ريويو.

___ **کول**:- اص.(۱) تبصره کول. په کتاب يا مقاله خپل خيالات څرګندول. (۲) نظرِ ثاني کول. کتاب وغېره په دوېم ځل کتل (اودرستول)

___**کېدل**:- اِص.په کتاب يا مقاله وغېره تبصره کېدل.نظرثاني کېدل.

**رويه**:- (ر+ وَ+يه) [فا.اِس.مؤ] روش. چاله. طور. طريقه. دستور. سلوک.

**رويي**:- (رو+ يی) [ق.ص]اد سلورو جوړ لوښے.

**رها**:- (ر+ ها) [فا.ص]خلاص.ازاد.

___ **کول**:- اِص .(۱) خلاصول. ازادول. د قېد يا بندنه اېستل. (۲) ختمول. لګول. خرڅ کول (عام نه استعمالېږي)

چې ئې نـــور له تا اخلي
په خپل لاس ئې کړه رها خوشحال

___ **کېدل**:- اص.خلاصې يا ازادي موندل.د قېد و بندنه ازادېدل.

**رهائش**:-(ر+ها+ئ+ش)ياي+ش)[ار.اِس.مؤ]استوږنه.اوسېدنه.سکونت. قيام.

___**اختيارول**: – استوګنه نيول. استوګن کېدل. ميشته کېدل.

___ **کول**:- اِص.اوسېدل.استوږنه کول. قيام کول.

___ **کېدل**:- ا ص.استوږنه کېدل. قيام کېدل.

**رهاي**:- (رِ+ ها+ئي) [فا. اِس.مؤ] خلاصي. ازادي. نجات.

___ **موندل**:-رها کېدل. خلاصي يا ازادي موندل. د قېد و بند نه ازادېدل.

___ **ورکول**:- اِص.(۱) رها کول. د بند نه ازادول. (۲) نجات ورکول. خلاصول.

**رهبان**:- (ر+ه+با+ن)[ع.اِس.ج.وا.راهب]دعيسايانو بزرګ يا عابد زاهد مشر.

نهٔ دې قېس رهبان قائم په خپل دين و مذهب کښې
نـــهٔ زرقېس رهبـــان نـــهٔ يـــو مسلمان د محمد(ص) خوشحال

**رهبانيت**:-(ر+ه+با+نی+ي+ت) [ع.اِس.مؤ]راهب کېدل.د راهبانو په شان ژوند تېرول.د دنيا نه ډډې ته کېدل.ترک دنيا (لارهبانيت في الاسلام. په اسلام کښې (رهبانيت نه شته)

**رهبر**:-(ر+ه+ب+ر)[فا.اِس.مذ.ج.رهبران مو: رهبره. ج رهبرې]لاره ښودونکے. رهنمای، کوونکے.

بـــې رهبـــره يُـــون د عشـــق پـــه لارې ګـــران دے
دلتـــه بويـــه چـــې پيـــدا کانـــدې رهبـــر څـــوک

چې زهٔ يـــار لـــره ورځـــم په هغې لارې
مهتر خضر مهتر اليس مې رهبران کړي رحمٰن بابا

**رهبري**:- (ر+ ه+ب+ري) [فا.اِس.مؤ]لارښودنه.رهنمائ.

رهـبري په درد او غم غوارم وصال تـــه
دا دستور دے چې مونده شي لار په لار حميد

**رهته**:- (رَ ه + ته) [ق.اِس.مؤ](صح: راحته)راحت. ارام. سوکالي

**رهټ**:-(ر+هَ+ټ) [ه.اِس.مذج: رهټونه]اَرټ. د کوهي نه د اوبو رايستلو لويه اله چې ډول چکلی، څرخ لوټکي وغېره لري. جلار (نور الفاظ د اَرټ تر لاندې اوګورئ)

**رهځ**:- (ر+ه+ ځ) [پ (ظف).اِس.مذ](۱) ګرد غبار. دوړه(۲) شور زوږ. (اصلاً عربي لفظ "رهج" دے چې همدغه معني لري)

**رهرو**:-(رَ+ه+رَو)[فا.اِس.مذ.ج.رهي وان.لاروے]امسافر.لاروے. په لاره تلونکے.

پـــه غفلـــت دې عمـــر تېـــر کـــړو
پـــه رهـــرو شـــوې نـــهٔ رهبـــر

لکه راغلې بيا به هسې ځنې دروې
دا جهان د رهبرانـــو دے ربـــاط رحمٰن بابا

**رهزن**:- (ر+ ه+ ز+ن) [فا.اِس.مذ.ج: رهزنان] شوکمار. ډاکه مار. ډاکو.

هېڅ پروا د دين په کار نهٔ کړې که وران شي
اے بې ننګه بې فـــرهنـــګه د ديـــن رهزنه حميد

باوري د بادشاهانو لکه غلهٔ شول
رهزنان ئې په دربار کا ځنې چارې خوشحال

**رهزني**:- (ر+ه+ زَ+نَي) [فا.اِس.مؤ]شوکماري. ډاکه ماري. لاره شوکول.

په اميد اميد ئې خلق نا اميد کړل
د فلک له رهزنۍ بې خبر مـه شه رحمٰن بابا

**رهط**:-(ر+ ه + ط) [ع.اِس .مذ ] ټولے. يو داسې ټولے چې په کښې د دريو نه لسو پورې کسان وي د ځنو په نزد دا شمېر د اووهٔ نه تر لسو پورې هم دے.

**رهن**:-(ر+ه+ن) [ع.ص.مذ] (اصلاً دا زبر سره دے خو په پښتو کښې عموماً د زبر سره وئيلې شي) ګانه ګرو چا سره څهٔ شے په ضمانت کښې کښېښول او د هغې په سر څهٔ رقم د هغهٔ نه پور کول يا قرض اخېستل. د مال يا د زمکې چاسره کښېښودل.

___ **نامه**:- (رهن + نا + مهَ) [و.درهن تلفظ][فاتر.اِس.مؤ.ج: رهن نامې]د ګانې

کاغذ. کفالت نامه.

**رهنما**:- (ر+ه+ ن + ما) [فا.اس ص.مذ]لار ښودونکے. رهبر.

**رهنمائے**:- (ر + ه + ن + ما + ( ئے ) [پ.اس.مذ] و ـــــــ رهنما.

محمد د گمراهانو رهنمائے دے

محمـد دے د رندو د لاس عصا      رحمٰن بابا

**رهوار**:-(رَ+ه+ وا + ر) [فا.اس.مذ](۱) د يو خاص قسم هوار تگ. (۲) آس

څوک سوارۀ په عراقيانو

تـــر چا لاندې ښۀ رهوار      خوشحال

**رهه** :- (ر + هَه) [ق.اس.مؤ]المونيم. يو قسم دهات. سلور.

**رهي**:- (رَ + هي) [پ.ص]روان. مجازاً مسافر.

ـــ **کول**:- اص.روانول.

ـــ **کېدل**:- اص.(۱) روانېدل. لارنيول. سفر اختيارول. (۲) مسافر کېدل.

ستا په مخ پسې مې درست وجود رهي شو

لـــه صـــورت نـــه دې وتـــلے زما روح      رحمٰن بابا

**رهېدل**:- (ر+ هې+ د+ ل) [ق. مص لا] ريېدل. هر هر کول د خر.

**رهېل**:-(ر+هې+ل)[پ.اس.مذ.وا.ج: رهېلونه]د لرگي جوړ هغه ستېند چې قران شريف پرې د لوستلو په وخت کښې کېښودے شي. رحل.

**رهـين**:-(ر+هـي+ن) [ع.مـذ] رهـن شـوے. گاڼه شـوے. پـه ضـمانت کښـې اېښودے شوے.

**رئيس**:-(ر+ئي+س)[ع.اس.مذ.ج: رئيسان] (۱) درياست خاوند. يامشر سردار. مشر حاکم. خان.(۲) موړ، مالدار او دولتمن سړے.

**رئيس زاده**:- (رئيس+زا+دَه) [فا.اس ص.مذ.ج: رئيس زادگان] د رئيس زوے. د مالداره شته من سړي زوے.

**رے**- (ر+ے) [اس.مؤ.ج: رے گانې]د "ر" د حروف (توري) نوم چې د پښتو په الفبا (حروف تهجي) کښې شپاړسم حرف (تورے) دے. په عربۍ کښې ورته "را" وائي.

**رے**:-(رے) [ق.اس.مذ](۱) فکر.سوچ. (۲) جاري نرخ. چلند نرخ. د نرخ اندازه. (۳) د مال د محصول فهرست.

ـــ **وهل**:-فکر کول. سوچ کول. اندازه لگول.

**ريا**:- (ر+ يا) [ع.اس.مؤ.ج: رياگانې] ښوونه. ظاهر داري. منافقت. دو رنگي.

ـــ **کول**:- اص.منافقت کول. ظاهر داري کول. د ښودنې يا نمائش د پاره څۀ ښه کار کول.

عبادت دې پـــه ريـــا شو

په مذهب کښې بد مذهبه      رحمٰن بابا

دـــ **نه کار اخستل**:- اص.دوکه بازي کول. زمانه سازي کول.

ـــ **کار**:-(ريا+کا+ر)[فاتر.اس.ص.مذ.ج.رياکاران.(مؤ.وا.رياکارې.ج: رياکارې)]منافق. دوکه باز. د خلقو د ښودلو او نوم گټلو د پاره څۀ ښۀ کار يا عبادت کوونکے چې ظاهر ئې يو شان وي باطن ئې بل شان.

ـــ **کاري**:- (ريا+کا+ري) [فا.اس.مؤ]منافقت. دوکه بازي. نوروته د ښودلو دپاره (ښۀ) کارکونه. ظاهر کاري.

**ريا**:- (ر+ يا) [پ(ظفر).اس.مؤ] د خر اواز. د خر هنې هنې.

**رياح**:- (ر + يا + ح) [ع.اس.ج.](۱) دريح جمع. هواگانې. (۲) د خېټې بدبوۍ باد. پوسکی.

**رياحين**:-(ر+يا+ح+ين)[ع.اس]دريحان گل. نياز بو. کشمالو. کشمالے. ببرے. خوژبين.

**رياست**:-(ر+يا+س+ت)[ع.اس.مذ.ج:رياستونه](۱)حکومت.سرداري. عملداري.(۲) داسې حکومت چې د بل يو لوے حکومت د لاندې د يو نواب ياد راجا حکومت وي.

**رياستي**:- هغه کار يا معامله چې رياست سره تعلق لري. حکومتي. دولتي.

**رياشه**:- (ر + يا + شَه) [ق.اس.مؤ]راشه په ځاے استعمالېږي.

**رياض**:- (رِ+يا+ض) [ع.اس.مذ](۱) باغ. د گلونو باغيچه (۲) مشق. محنت

د يار کُوڅه مې بيا مونده د يار له بويه پوره

هـــــوا بـــــه د گلونو نوره څو کړم د رياض      خوشحال

ـــ **کول**:-مشق کول.ديوکار بيا بيا کول محنت کول. خصوصاً د سندر غاړي د پخو سندرو مشق کول.

**رياضت**:-(رِ+يا+ض+ت)[ع.اس.مذ.ج.رياضتونه] (۱) محنت .مشقت. تکليف تېرول (۲) خپل نفس قابو کول. نفس کشي. (۳) و ـــ رياض

بل نعمت د رياضت دے که ئې گوري

پـــه هغـــه جـهـــان راحت ولې محنت      خوشحال

ـــ **کول**:- اص محنت کول. عبارت کول.

رياضت په قيامت نۀ شي مرد هغه دے

چې ئې اوکـــړۀ ريـــاضت پـــه دا دنيا      رحمٰن بابا

ـــ **کېدل**: اص.محنت مشقت کېدل. عبادت کېدل.

د ابليس و ريـــاضت تـــه دې نظر کا

چې غرور کا په طاعت په رياضت څوک      رحمٰن بابا

**په ـــ غرور کول**:- اص.په خپل عبادت و يار او فخر کول.

ـــ **کش**:- (رياضت+ک+ش) [فاتر.اس ص](۱) محنتي. محنت کش. خواري کښ(۲) هغه سړے چې عبادت جاري ساتي.

**رياضتي**:-(ر+يا+ضَ+تي) [ع.ص]رياضت کوونکے. خواري کښې. محنتي.

**رياضي**:-(ر+يا+ضي) [ع.اس.مؤ]د يو علم نوم چې په کښې حساب، هندسه او جبر و مقابله (الجبرا) وغېره شامل دي. هغه علم چې د مقدار. سطحې حجم يا کچ تول سره تعلق لري او د خاصو علامتونو نه په کښې کار اخستے شي.

ـــ **دان**:-(رياضي+دا+ن)[فاتر.اس ص.مذ.ج:رياضي دانان] د چا چې د رياضۍ علم زده وي يا د رياضۍ د علم پوهان د علم حساب ماهر.

**ري ايکشن**:(رِی+اے+ک+ش+ن)[انگ.اس.مذ]جوابي عمل .ردعمل . ارتکاس.

**ريال**:-(ر+يا+ل)[ع.اس.مذ.ج.ريالونه] د سعودي عرب او د ځينو نورو عربو حکومتونو سکه.

**ريات**:- (ر+ی+يا+ن) [ع.مذ](۱) چې ښې ډېرې اوبه ورکړې شوې وي.ښه اوبه شوے. (۲) ښېراز. تاند. ښاليز.

**ريب**:- (رے+ب) [ع.اس.مذ]شک شبه. گمان. وسواس.

**ريبار**:-(رے+با+ر)[پ.اس.مذ.ج.ريباران.(مؤ.وا.ريباره. ج: ريبارې)] روئيبار. ددوو مينانو تر مينځه پيغام اوړونکے راوړونکے. استازے. قاصد

**ريباري**:-(رے+با+ري)[پ.اس.مؤ]د دوؤ مئينانو تر مينځه استازگېري. قاصدي. د پيغام وړل را وړل

د رېبار منت ئې ډېـــر رابـاندې بار دے

چې مې يار موندۀ ددۀ په رېبارۍ کښې      خوشحال

ـــ **کول**:- اص.استازگېري کول. قاصدي کول. پيغام وړل را وړل.

د هغه حسن بيـــان پـــه کـــوم زبان کړم

چې يوسف غوندې خوبروئے ريباري کړي      حميد

**ريباس**:-(رې + با + س) [ع.اس.مذ](۱) يو بوټے چې ريوند ترې پېدا کېږي(۲) يوه سبزي چې خوندئې تريو وي (ظفر)

**رئبېج**:-(رې+ب+(د)+ن) [پ.(مر).اس. مذ. ج. رئبېجونه]رېبز. جارو.

**ريبځبو تې**:-(رِي+بَ(د)ز+بو+تَي) [پ.اِس.مذ]هغه بوټي چې جارو ترې نه جوړوي.

**رېبځوالا**:-(رِي+ب+(د )ز+وا+ لا [پ.اِس ص. مذ] هغه سړے چې جارو ګاڼي خرڅوي. جارو فروش.

**رېبځے**:-(رِي+بَ(د)+زَے)[پ.اِس.مذ.ج:(رېبځي)جارو وركوونكے.جاروكښ. جارومار]

**رېبدل**:- (رِي+ب+د+ل) [ق.مص مت]ربېل. پرېكول. لوكول.

**رېبدلے**:-(رِي+ب+د+لَے) [ق.مف.مذ.ج:رېبدلي]ربېلے پرې كړے. لو كړے.

**رېبدون**:-(رِي+ ب + دو + ن) [پ (ظفر). اس. مذ]د يوې ونې نوم.رېدوان.

**رېبل**:-(رِي+ب+ل) [پ.مص مت] رېبدل. پرېكول. لوكول. رېبلنګ. (لور سره پرې كول)

هر هر فصل چې تـرې رېبي هوسېږي
چې په ګوندې راته بل فصل تيار شي رحمٰن بابا

**رېبلنګ**:- (رِي+ب+ل+ن+ګ) [ق.حمص] و ــــ ربېل.

**رېبلونكے**:(رِي+ب+لو+ن+كَے)[ق.فاع.مذ.ج:رېبلونكي.مؤ:رېبلونكې] رېبونكے.لوكوونكے.

**رېبند**:-(رے+ب+ن+د) [ق.اِس.مذ.(مؤ.وا: رېبنده.ج: رېبندې) ]راكوږ شوے. غورځېدلوته ته تيار. ځنګزن.

ــــ**كول**:- اِص .راكږول. ځنګزن كول.

ــــ **كېدل**:- اِص.راكږېدل. ځنګزن كېدل.

ــــ **توب**:- (رېبند + تو + ب) [ق.اِس.مذ]رېبند تيا. رېبند والے. كوږ والے. ځنګزنتوب.

ــــ **تيا**:-(رېبند+ت+يا) [ق.اِس.مؤ]و ــــ رېبند توب.

ــــ **والے**:- (رېبند+وا+لے) [ق. اِس.مذ]و ــــ رېبند توب.

ــــ **ول**:-(رے+ب+ن + د+و+ل) [ق.مص مت]راكږول. ځنګزن كول. ټاټ وركول.

ــــ **ونګ**:- (رے + ب + ن + دَ + وَ + ن + ګ) [ق.حمص]رېبندونه.

ــــ **ونه**:- (رے+ب +ن+ د+ و+ن+ه) [ق.حمص]رېبندونګ. راكږونه. ځنګزن كونه.

ــــ **وونكے**:-(رے+ب+ن +د+وو+ن+كے) [ق.فاع.مذ. وا. ج: رېبندوونكي. مؤ: (رېبندوونكې]. راكږوونكے. ځنګزن كوونكے.

**رېبنده لار**:-(رِي+ب+ن+د+ا+لا+ر) [ق.اِس ص. مؤ]كږه لار.كږ ليچنه لار. زوږ ناكه لار.

**رېبند بدل**:-(رِي+ب+ن+دې+ د + ل) [ق.مص لا]كږ بدل. ځنګزن كېدل.

**رېبندېدنګ**:- (رِي + ب + ن + دې + د + ن + ګ) [ق.حمص]رېبندېدنه.

**رېبندېدنه**:(رِي+ب+ن+دې+د+ن+ه)[ق.حمص]رېبندېدنګ.رېبندېدۀ.كږېدنه.ځن ګزن كېدنه.

**رېبندېدونكے**:-(رِي+ب+ن+دې+دو+ن+كَے) [ق.مف.مذ.ج: رېبندېدونكي. مؤ: رېبندېدونكې]راكږېدونكے.ځنګزن كېدونكے.

**رېبندېده**:- (رِي + ب + ن + دې + د+ه) [ق.حمص]و ــــ رېبندېدنه.

**رېبنګ**:-(رِي+ب+ن+ګ) [ق.رېبنه. پرېكونه. لوكونه.

**رېبنه**: (رِي+ب+نَ+ه) [پ.حمص]رېبنګ. رېبدنه. پريكونه. لوكونه.

**رېبونكے**:-(رِي+بو+ن+كَے) [پ.فاع.مذ.ج:رېبونكي.مؤ:رېبونكې] رېبدونكے. لو كوونكے. لوكړے.

**رېپړے**:-(رِي+پ+ړَے)[ق.اِس.مذ]لېپړے. خړوے. ختوبے. لېټي. ختيل.

**رېپورټ**:- و ــــ رپورټ.

**ريت**:-(ر+ی+ت) و ــــ وريت د ريت سره متعلق ټول الفاظ د "وريت" لاندې وګورئ.

**ريت**:- (رِي + ت) [ه.اِس.مذ]رسم. رواج. دود د ستور. قاعده. قانون.

ــــ **رسم**:-(ريت+ ر+س+م) [ار. اِس.مذ]دود دستور. د وادۀ ښادۍ رسمونه. د ستور. رواجونه.

**رېتاړه**:-(رِي+ تا+ړ+ه) [ق.اِس.مذ. ج: رېتاړې]رېخانګه. چيرړه. څيره.

**رېتي**:-(رِي+تي)[ه.اِس.مؤ]سوان. د فولادي اوسپنې يو اوزار چې دهات څيزونه پرې صفا كوي. هواروي او سولوي.

ــــ**كول**:-اِص.په سوان كول. په سوان سولول. منبل يا هوارَول. په سوان صفا كول.

ــــ **پيتي**:- (ريی+تَي+پِي+تِي) [پ.ص] ريتي پيتي. ګاره واره. څيري ويري. ريچې ريچې. رېښې رېښې (و ــــ رت پت)

ــــ **كول**:- اِص.ريتي پيتي كول. ګارے وارے كول. ريچې ريچې كول. رېښې رېښې كول.(و ــــ رت پت)

ــــ **كېدل**:-اِص.ريتي پيتي كېدل. ګارې وارې كېدل. ريچې ريچې كېدل. رېښې رېښې كېدل.

**ريټ**:- (رِي+ ټ) [انګ.اِس.مذ]نرخ د خرڅون عام قيمت.

**ريټائرډ**:-(رِي + ټا+ئ+ ر + ډ) [انګ.اِس ص]هغه ملازم چې د ملازمت نه فارغ شوے وي. د نوكرۍ نه سبكدوشه شوے.

ــــ **كول**:- اِص.(١) د نوكرۍ يا مستقل كارنه فارغول.د نوكرۍ د ميعاد په پوره كېدو فارغول.

ــــ **كېدل**:-اِص.د نوكرۍ يا كارنه فارغېدل. د نوكرۍ ميعاد ختمېدونه پس د نوكرۍ نه فارغ كېدل. د كارنه سبكدوشه كېدل.

**ريټه**:-(رِي +ټ+ه) [پ.اِس.مؤ.و. ج: ريټې]د يوې ونې مېوه يا تخم چې پوستكه ئې د صابون په توګه استعمالولے شي. خاص طور سره ورېښې او رېښمينې جامې پرې وينځي. اريټه. زنانه سر هم پرې وينځي.

**رېټه**:- (رِي + ټَ) [پ.اِس.مؤ.ج: رېټې]اروټه. داور بشو ډوډۍ.

**ريجنټ**:-(ر+ ی+ ج + ن + ټ) [انګ. اَس.مذ]د بادشاه د طرفه نيابت كوونكے افسر. نائب السلطان يا نائب الملك.

**رېجون**:-(رِي+ جو+ن) [پ (سو) .اِس.مذ]سود، منافع يا د تجارت په شركت كښې مقرره منافع.

**رېجه**:-(رِي+ ج+ه) [ق.اِس.مؤ]د زرګرانو هغه اله چې د سپينو زرو تارونه پرې اوباسي. جندره. جندرۍ.

**ريچ**:- (رِي + چ) [ق.اِس.مذ.ه.ج: ريچونه]اوږه تيږه. كاڼے. ګاټے.

**ريچ پېښن**:-(ريچ + پې+ ش يا خ) [ق.اِس.مذ]ريچوغ. هغه بږ منځ چې غابن ئې په تار اوتړي او دسر نه پرريچې را او باسي.

**ريچن**:- (رِي+چ+ن) [پ.اَس.مذ .(مؤ.وا: ريچنه.ج: ريچنې]هغه څيز يا كس چې د ريېچون ډک وي. اصطلاحاً پوهږ او سخا.

**ريچوغ**:- (رِي + چ + ؤ + غ) [ی. اِس.مذ]و ــــ ريچ پېښن.

**ريچه**:- (رِي + چ+ه) [پ.اِس.مؤ.ج: ريچې] د سپړې تخم. ډېره وړه سپږه.

**ريچې ريچې**: —(رِي +چې+ رِي+ چې) [پ.ص]ذرې ذرې. ګارې وارې. رېښې رېښې. بخرې بخرې.

ــــ **كول**:- اِص.ذرې ذرې كول. ګارې وارې كول. رېښې رېښې كول. بد بد شلوول.

ــــ **كېدل**:- اِص.ذرې ذرې كېدل. ګارې وارې كېدل. رېښې رېښې كېدل. بد بد شلېدل.

**ريح**:- (رِي + ح) [ع.اِس.مذ](١) باد .هوا (٢) د خېټې (ګېډې) د معدې يا د كلمو باد. (٣) بادي درد.

**ريحان**:-(رَ يِ + حا + ن ) [ع.اِس.مذ]يو خوشبو داره ګل دے. کشمالو. ببرے. نازبو.خوژبين.

ستا تر زلفو پورې نورې زلفې څۀ دي
پــه خاشاک به د چمن رېحان ورنکړم        رحمٰن بابا

**تخم** ــــ:- د ريحان د بوټي تخم. د کشمالو تخم . چې په شربت کښې اچولے شي.

**ريخ**:- (رِي + خ) [پ.اِس.مذ]نرم بول. دست.

ـــ **وهل**:- اِص.په دست تلل. ډيرې نرۍ بولې کول

**ريخاړے**: – (رِي+خا+ړ ړے) [پ.اِس.مؤ.ج: وا: ريخاړه]ډېر نرم دستونه. داوبو په شان نرۍ بولې.

**ريخانګه**:- (رِي + خا + ن + ګ+ه) [پ.اِس.مؤ.ج: ريخانګې]و--- ريتاړه.

**ريختاړه**:-(رِي+خ+تا+ړ+ه) [ق.اِس مؤ.ج: ريختاړې (۱) نرم شيان. (۲) د کپړې شلېدلي او ورسته ټوټه.

**ريخته**:-(ر+ې+خ+ته) [فا.حمص](۱) اچولے. پروت. غورځولے. خور وور. توے کړے. تل کړے. (۲) ګډه وډه ژبه ـ د اردو د ژبې زوړ نوم. (۳) استکارۍ مساله لکه چونه. سرخي او شګه وغېره.

ـــ **کول**:-(ر+ے+خ+ت+کَ+ؤ+ل) [فا پ. مص] تويول. تلول. ښکته غورځول.

نۀ مومم طبيب چې د علت وينه رېخته کا
تن کښېودے نۀ شم د نا اهلو و الماس ته        حافظ

**ريخچاړي**:- (رِي + خ + چا + ړِي) [ق.ص]خيرن. خيچن او ببر وېښتۀ.

**ريخک**:- (رِي + خَ + ک) [ق.اِس.مذ]ريخې. د ګډو بزو د دستونو بيماري.

ـــ **په ګډېدل**: – اص. په ګډو بزو د دستونو مرض راتلل. ريخې لګېدل. ريخک لګېدل.

ـــ **لګېدل**:- اِص.و ـــ ريخک په ګډېدل.

ـــ **وهل**:- اِص.د ګډو بزو يا نور و څاروو په دستونو تلل. په دست تلل.

**ريخک**:- (رِي + خ + ک) [ق.اِس.مذ] د غوز يا اکوړ يو قسم لوبه.

**ريخل**:- (رِي + خ + ل) [پ.مص لا] ريخې وهل. په دستونو تلل.

**ريخلے**:- (رِي + خ + لَے) [پ.مف.مذ.ج: ريخلي. مؤ.ريخلې]ريخې وهلے. په دستونو تللے.

**ريخن**:-(رِي+خ + ن) [پ.اِس ص.مذ. (مؤ.وا. ريخنه. ج: ريخنې)]ريخ وهونکے.په دستونو تلونکے.

**ريخنه**:- (رِي + خ + نۀ) [پ.حمص]ريخ وهنه. په دستونو تلنه.

**ريخونکے**:-(رِ ي + خو + ن + کے) [پ.فاع.مذ.ج: ريخونکي. مؤ: ريخونکې] ريخ وهونکے. په دستونو تلونکے.

**ريخول**:-(رِي + خَ + ؤ + ل) [پ.مص مت]په دستونو کول.

**ريخولے**:- (رِي+ خ + ؤ+لے) [پ.مف.مذ.ج: ريخولي. مؤ: ريخولې] په دستونو کړے.

**ريخونګ**:- (رِ + خَ + ؤ + ن + ګ) [ق.حمص] ريخونه.

**ريخونه**:- (رِي + خَ + ؤ + نَ) [پ.حمص]ريخونګ. په دستونو کوونه

**ريخوونکے**:(رِي+خَ+وو+ن+کے)[پ.فا.عمذ.ج:ريخوونکي.مؤ:ريخوونکې]په دستونو کوونکے.

**ريخه**:- (رِي+خَ) [ق.اِس.مؤ.ج: ريخې](۱) د کپړې يوه چيرړه. (۲) د ريښمين قناويز پټۍ چې ښځې ئې په خپلو جامو لګوي. (و ـــ ريښه)

**ريخے**:-(رِي+خے) [پ.اِس.مذ] د څاروو يوه بيماري چې دستونه پرې اولګي. ريخک.

**ريخېدل**:- (رِي+خے+د+ل) [پ.مص لا] ريخک کېدل. د څاروي په دستونو تلل.

**ريخېدلے**:- (رِي+ خے + د + لَے) [پ.مف.مذ.ج: ريخېدلي. مؤ: ريخېدلې] څاروي په دستونو شوے.

**ريخېدنګ**:- (رِي + خے + ؤ + ن + ګ) [ق.حمص]ريخېدنه.

**ريخېدنــــه**:-(رِي+خې+د+ن+ه)[پ.حمص]ريخېدنګ.ريخېــدۀ.دڅاروي پــه دستونو تلنه.

**ريخېدونکے**:(رِي+خے+دو+ن+کے)[پ.مف.مذ.ج:ريخېدونکي.مؤ: ريخېدونکې]ريخک وهونکے. په دستونو تلونکے څاروے.

**ريخېده**:- (رِي+ خے + د ) [پ.حمص]ريخېدنګ. ريخېدنه.

**ريدک**:-(رِي+د+ک) [ف.اِس.مذ]ښکلے هلک. مرد (چې لا بريت ئې نۀ وي شنه شوي)

**رېدوان**:- (رے+د+وا+ن) [پ(ظفر).اِس.مذ]و ـــــــ رېبدون.

**رېدي**:-(رے+دی)[پ.اِس.مذ.ج:رېدي]رېدے.رېدي ګل.ګل لاله.د قاشقاشو (خشخاشو) ګل.

هــــزاره هـــزار پـــاره شــول افسوسه
د رېدي غريب ئې وريت کړو په داخل زۀ        علي خان

**رېدے**:- (رے + دَ ے) [پ.اِس.مذ](و ـــ رېدي)

**ريډار**:-(رے+ ډا+ر) [اَنګ. اس.مذ.ج:ريډارونه] هغه اله چې په فضا کښې د هواۍ جهازونو وغېره موجودګي او فاصلې وغېره ترې معلومولے شي. (بل تلفظ ئې راډارهم دے)

**ريډر**:-(ر+ي+ډ+ر) [انګ.اِس.مذ](۱) لفظي لوستونکے. (۲) هغه منشي چې په عدالت کښې جج يا مجسټريټ ته د مقدمې فائلونه وړاندې کوي. (۳) په يونيورسټو کښې د پروفيسر د درجې نه لاندې درجه.چې اوس ورته ايسوسی ايټ پروفيسر وائي.

**ريډ شرټ**:- (رې + ډ + شَ + ر + ټ) [اِنګ.اِس.ص]سرخپوش.

**ريډ کراس**:(ريډ+ک+را+س)[اَنګ.اِس.ج.ريډ کراسونه]لفظي.سورصليبي. نشان چې د ريډاکراس سوسائټي نښان دے چې په هسپتالونو يا هسپتالي ګاډو وغېره لګولے شي.

ـــ **سوسائټي**:- (ريډ کراس. س و. سا + ئ + ټی) [انګ.اس]هغه جماعت چې د جنګ په موقع ، د زخميانو ملهم پټۍ کوي او دامن په وخت کښې د بيمارانو خدمت کوي.

**ريډ کريسنټ**:-[انګ.اس]دريډ راس په مقابله کښې.سور هلالي دريډ کراس په شان د مسلمانانو د جماعت نشان. هلال احمر.

ـــــ **سوسائټۍ**:-[انګ.اس]دريډ کراس په شان د مسلمانانوجماعت يا ټولے. وګورئ ريډ کراس سوسائټي.

**ريډنګ روم**:-(ر+ي+ډِ+ن+ګ+ر+و+م) [انګ .اِس](۱) هغه کمره چې لوستنه يامطالعه په کښې کولے شي. په لائبريرۍ کتب خانه کښې هغه کوټه. چرته چې اخبارونه رسالې پرتې وي. کرسۍ اوميزونه په کښې پراته وي اوپه خاموشۍ سره په کښې مطالعه کولے شي.

**ريډي**:- (رے + ډی) [انګ.امر](۱) تيار. مستعد. اماده. (۲) تيار شه.

ـــ **ميډ**:-(رېډی+م+ے+ ډ) (۱) تيارجوړ شوے.(۲) تيارې جوړې شوې اوګنډلې شوې جامې.

**ريډيالوجسټ**: -(رے+ډ+يا+ل+ج+س+ټ) [اَنګ. اِس]د شعاعونو د لهرونومتعلق علم کښې ماهر.

**ريډيالوجي**:-(ر ے+ډ+يا+لو+جی) [اَنګ.اِس.مؤ]د شعاعونو د لهرونو سره تړلے علم.

**ريډی اَيټر**:-(ر+ډ+ی+ا ے+ټ+ر) [انګ.اس.مذ]د موټروپه مشين کښې يوه اله چې د اوبو په ذريعه پرې انجڼ يخ ساتي.

ـــــ**ايشن**: –(رے+ډی+ا ے+ش+ن) [انګ.ص] د اواز وغېره د

لهرونوخوربدنه. انتشار. نشر کېدنه.

**ریډیم**:-(ری+ډی+ئ+م)[انګ.اس.مذ]یوعنصر. دهات چې په ۱۹۹۸عیسوي کښې پېدا او مادام کیوري دریافت کړے وۀ. د سرطان د علاج د پاره پکارولے شي.

**ریډیو**:-(رے+ ډی + یو) [اَنګ. اس.مذ.ج: ریډیوګان](۱) د اواز وغېره لهرونه چې په فضا کښې خوارۀ وي. (۲) دریډیو لهرونو خوارۀ کړي اوازونه رانیوونکے اله. ریډیو سېټ.

**سټېشن**:- (ریډیو+س +ټ+ې+ش + نَ) [اَنګ. اِس.مذ]هغه ځاے یا عمارت چرته چې د اواز لهرونه خوارۀ کولے یارانیولے شي.(عوام ورته ریډیو سټېشن وائي)

**رےرے**:- (رے+رے ) [اِپ.اس صو](۱) د اوښ د رابللو اواز.(۲) یو قسم سندره چې اوښانو ته وئیلے شي. (حدی)

**رېږ**:- (رې + ږ) [ق.اِس.مذ.ج: رېږونه]قطار. لین.

**رېږم**:-(رې+ږ+م) [ق.اِس.مذ.ج: رېږمونه]مرجان. ایلوم (ورډګ) ایمان(کاکړ).یو قسم قیمتي کاڼے.

**رېږه**:-(رې+ږ+ه) [ه.اس.مؤ+ ج: رېږې ]یو قسم اوږدګاډے چې سامان پرېوړي راوړي او عموماً په سنډا راښکے شي.(سرې ئې هم راکاږي)(۲) د سامان وړلو راوړلو هغه ګاډے چې په اس راښکے شي. (۳) (طنزاً هغه ټانګه چې ورو ورو ځي یا ډیره زَړه وي.

___**وال**:-د رېږې چلوونکے. د رېږې څښتن.

**رېږي**:-(رې+ږي)وړه رېږه. چې عموماً درې پاي لري چې سودا پرې کېښودلے او خرڅولے شي.

___**مار**:-(۱) هغه سړے چې په رېږۍ باندې سامان وغېره خرڅوي. (ددوکاندار په مقابله کښې)

**رېږے**:-(رې+ږَے) [ق.اِس.مذ.جؤ:رېږی] هغه ګډ چې په تندي ئې سپین داغ وي.

**رېز**:- (رې + ز) [ق.اِس.مذ](۱) د مرغیو د ونې نه ښکته راکوزېدل. (۲) مرغیو ته خبرې ورزده کول. (۳) دورېدنه. غورځېدنه.

___ **کول**:- اِص.دوړول. غورځول. نوستل.

غوږ بائده دي سزا وار چې ئې ګوشوار کا
چې مې ربـــز هسې ګــوهــر کــه له قلم سعید

___ **کېدل**:- اِص (۱) لوستلے کېدل. (۲) ټکرې ټکرې کېدل.

**ریز**:- (رې+ ز) [ق.اس.مذ]راشے.د واؤرې ګاډے.

**ریزر**:-(رے+ز+ر) [اَنګ. اِس.مذ.ج: ریزونه] (۱) د ږیرې د وینښتو د خرئیلواله پاکي. (۲) د ږیرې د وینښتو د خرئیلو اله.

**ریزرو**:- (رې+ز+ر+ و) [اَنګ.صف] مخصوصول. خاص کول.

___ **کول**:- خاص کول. مخصوص کول. په جهاز، ریل ګاډي یا سنیما وغېره کښې سیټ (د ناستې ځاے) مخصوصول. په هوټل وغېره کښې کمره (کوټه) مخصوص کول. د ګاډي ډبه مخصوص کول.

___ **کېدل**:-خاص کېدل. مخصوص کېدل. په جهاز، ریل ګاډي وغېره کښې سیټ (د ناستې ځاے) مخصوص کېدل. یا په جهاز (داوبو)، ریل ګاډي، هوټل وغېره کښې کوټه (کمره یا ډبه) مخصوص کېدل.

**ریزرویشن**:-(ری+ز+ر+وې+ش+ن)[انګ.اس.مذ.ج: ریزوریشونه]مخصوص کول.خاص کول په جهاز،ریل ګاډي .یا سنیما وغېره کښې سیټ (دناستې ځاے) مخصوصول.

**ریزش**:- (رے+ ز+ ش) [فا. اِس.مؤ] زکام. نزله. دومې.

**رېزګاري**:-(رې+ز+ګا+ري) [فا.اِس.مؤ]مات ګډ.روپۍ. پیسې یا نورې وړې سکې. مات حساب. خورده.

**ریزګي**:- (رې +ز+ګي) [صف.مؤ] چوره. براده. میده.

**ریزلټ**:-(ر+ې+ز+ ل + ټ) [انګ.اس.مذ] (۱) نتیجه. دیو کار اخري انجام. (۲) دامتحان نتیجه. د پاس کېدو یا فیل کېدو اعلان.

___**اوښکل اوباسل**:- نتیجه اوښکل. دامتحان نه پس د امیدوارانو د کامیابۍ یا ناکامۍ اعلان کول.

___**وتل**:- (د امتحان/ نتیجه راوتل. د پاس او فیل اعلان کېدل.

___ **مرېز**: (رې+ز+م+رې+ز)[اِپ. ص.مذ.(مؤ.وا:ریزمرېزه.ج: ریز مرېزې)] ذرې ذرې. ټوټې ټوټې.

چې د تمام جهان عقل غلبېل کړمه
ربز مرېز مې پیکان ولیـدې دربغه رحمٰن بابا

___ **کول**:- اِص.ذرې ذرې کول. ټوټې ټوټې کول.

پـــه کاټهٔ کاټهٔ زړهٔ لادرته تاؤ تاؤ شي
د لړګي لښتې په غاښ کړې ربز مرېز خوشحال

___ **کېدل**:- اِص.ذرې ذرې کېدل. ټوټې ټوټې کېدل.

**ریزولوشن**:- (رې+زو+لو+ش+ن) [اَنګ.اِس.مذ.ج: ریزولوشنونه] تجویز. قرار داد.

___ **پاس کول**:-قرار داد منظور ول. تجویز غوره کول. تجویز منظورول.

**رېزه**:(رې+زَ)[فا.اِس.ص.مؤ.ج:رېزې](۱)ذره.بخرے.پوټسکے.خشوځکے. (۲) خوراک.

___ **کول**:- ذرې ذرې کول. بخرې بخرې کول.

___ **کېدل**:- ذرې ذرې کېدل. بخرې بخرې کېدل. وړې وړې ټکرې جوړېدل.

___**خور**:- (رېزه + خو + ر) [فا. اِس ص.مذ] خوشه چین.

___ **کاري**:- (رېزه+کا+ري) [فا. اِس ص.مؤ] باریک کار کول.

**رېژول**:-(رې+ ژَ+و+ل)[اِپ.مص متا] رژول. دوړول. توېول. راجدا کول.

دا جهان په شان د باغ دے
خواجه محمده د یارانو مرګ خزان دے
وارپه وارئې ریژوي لکه ګلونه

**ریژون**:- (رې + ژو/جو + ن) [اِپ.حمص] رژېدنه. دورېدنه. توئېدنه.

آسمان ډک ویني له ستوني پرویښن دے
چې ربژون تــر تــاج د کے سرد پرویز کا سعید

___ **کول**:- اِص.رژېدل. دورېدل.

**رېژېدل**:-(رې+ژې+د+ل) [اِپ.مص لا]رژېدل.توئېدل.دورېدل. د څۀ څیز نه راجدا کېدل.

**رېږد**:- (رې +ږ یا ګ+ د) [اِپ.اِس.مذ]لرزه. لړزېدنه. رپېږے. رپندے. رپېدنه. رپ. خوزېدنه. رېږدان.

**رېږدان**:- (رې+ ږ یا ګ + دا +ن) [ق.اِس.مذ]و ___رېږد.

**رېږدل**:-(رې+ږ یا ګ+ د+ ل) [اِپ.مص لا]رېږدېدل. لړزېدل. خوځېدل. رپېدل.

**رېږدله**:- (رې + ږ یا ګ + د + ل) [ق.اِس.مؤ] زلزله. د زمکې خوځېدنه.

**رېږدند**:-(رې+ ږ یا ګ+د+ ن + د) [ق.اِس.مذ] لړزان. رپېدنه. رپېږے . لړزه.

**رېږدنه**:- (رې+ږ یا ګ+د+ن+ه) [اِپ.حمص]رپېدنه. لړزېدنه. خوځېدنه. لړزه. رپېږے. رپندے.

**رېږدول**:-(رې+ږیاګ+د+ؤ+ل)[اِپ.مص متا]لړزول. خوځول.رپېږے پرراوستل. لړزه راوستل. رندے را وستل.

**رېږدولے**:(رې+ږ+یاګ+د+و+لے)[اِپ.مف.مذ.ج.رېږدولي.مؤ:رېږدولې] لړزولے. خوزولے.

**رېږدونکے**:(رې+ږ+یاګ+دو+ن+کے)[اِپ.فاع.مذ.ج:رېږدونکي.مؤ:

رېږدونکي] لړزېدونکې. خوزېدونکې. رپېدونکې.

**رېږدونګ**:-(رِږ+ژيا ګ + د + وُ+ن+ ګ) [ق.حمص]رېږدونه. لړزونه. خوځونه.

**رېږدونه**:-(رېر+ژ+يا ګ+د+ وُ+ ن+ه) [اپ.حمص] و ــــ رېږدونګ.

**رېږدوونکې**:-(رِږ+ژياګ+د+وو+ن+ کې) [اپ.اس.فاع.مذ.وا.ج: رېږدوونکي. مؤ: رېږدوونکې]

**رېږدېدل**:- (رِږ+ژ يا ګ+دي+ د+ ل) [اپ.مص لا]رپېدل. خوځېدل. لړزېدل.

چې مهم ئې ستـا د ســترګـو اس واخست

ملک د زړهٔ مې ځکه رېږدي هراس واخست علي خان

**رېږدېدلې**:-(رِږ+ژياګ+دي+د+لې)[اپ.مف.مذ.ج.رېږدېدلي.مؤ: رېږدېدلې] رپېدلې. لړزېدلې. خوځېدلې.

**رېږدېدنګ**:- (رِږ + ژ يا ګ + دي+ د+ن+ ګ) [ق.حمص]و ـــ رېږدېدنه)

**رېږدېدنه**:-(رِږ+ژياګ+دي+د+نَه)[اپ.حمص]رېږدېدنه، لړزېدنه. خوځېدنه.

**رېږدېدونکې**:-(رِږ+ژياګ+دي+دو+ن+کې) [اپ.مف.مذ.ج: رېږدېدونکي. مؤ: رېږدېدونکې]رپېدونکې. لړزېدونکې. خوځېدونکې.

**رېږدېده**:- (رِږ + ژ يا ګ + دي + دهٔ) [اپ.حمص]و ــ رېږدېدنه.

**رېږوې**:- (رِږ + ژ يا ک + وې) [ق.اس.مذ]د ګړوري اواز.

ــــ **کول**:- اص. د ګړ وري اواز کول.

**ريس**:- (رِي + س) [ه.اس.مؤ] سيالي. بل سره ځان برابرول. مقابله.

ــــ **کول**:- اص.سيالي کول. مقابله کول.

ــــ **کېدل**:- اص.سيالي کېدل. مقابله کېدل.

**رېس**:- (رِي+س) [اَنګ.اس.مذ](۱) د اسونو د زغلېدو يا د منډو مقابله. ګوړ دوړ (۲) منډه. د زغل مقابله.

**دريس اس**:- (اَنګ.اس.مذ. هغه اس چې زغل دمقابلې دپاره تيارکړے شوے وي.

**ريس کورس**:- (رِي+س+کو+ ر+س) [اَنګ. اس.مذ]د اسونو د زغل ميدان.

**ريسرچ**:- (رِي+ س+ ر + چ) [اَنګ.اس.مذ]لټون. څېړنه. تحقيق.

ـــ **کول**:- اص.لټون کول. څېړنه کول. علمي تحقيق.

ـــ **کول**:- اص.لټون کول. څېړنه کول. علمي تحقيق کول.

ــــ **ارټيکل**:-(ريسرچ+ا+ر+ټي+ک+ل) [اَنګ.اس.مذ]تحقيقي مضمون. هغه مضمون يا مقاله چې په کښې څهٔ (نوے) تحقيق او څېړ نه شوے وي.

ـــ**ارګنائزيشن**:-(ريسرچ.ا+ر+ګ+نا+ئ+زي+ش+ن)[اَنګ.اس.مذ]هغه اداره چې د تحقيق يا څېړنې کار سره تعلق لري.

ـــ **انسټي ټيوټ**: – (ريسرچ +ا+ن+س+ ټي+ټ+يو+ ټ) [انګ. اس.مذ]هغه اداره چې په کښې د تحقيقاتو يا د څېړنې ښودنه کېږي.

ــــ **پيپر**:- (ريسرچ +پي+پ+ ر) [اَنګ. اس. مذ] تحقيقي مقاله.

**ريسس**:-(ر+ی+س) [اَنګ.اس.مذ] د معطلۍ وخت. ددې وقفه و تفريح وقفه.

**ريسمان**:- (رِي+س+ ما+ ن) [فا.اس.مؤ] رسۍ. پړے. مزے.

**ريسيور**:-(ر+ي+ س+ ي+ وُ+ر) [اَنګ.اس.مذ]د ټيليفون هغه اله چې خبرې په کښې کولے يا اورېدے شي. د سماعۂ اله. د ټيليفون سماعته.

**ريش**:-(رِي+ش)[اَنګ.صف]ډېر تيز.د بې احتياطۍ تر حده تيز.لکه ريش ډرائيور يا ګاډے ريش چلول.

**ريش**:- (رِي+ ش) [فا.اس.مؤ]ږيره.

نتيجه ئې ريش ګنده جامه پاره وي

آدم زاد چې لــه چـار پايه محبت کا رحمٰن بابا

ـــ **(اوسر) سپينول**:-ږيره او د سر ويښتهٔ سپينول. يعني زوړ عمر ته رسېدل. سپين ږيرے کېدل.

سپين لې ريش وسر کړمه پيرئ په څلو واورو

تبر شۀ تابستان دځواني ، بيا ئې راتلهٔ نشته حافظ

**رېش**:- (رِي + ش) [اپ.اس.مذ]زخم. خوږ.

لاد وخته د طبيب طلب بائده دے

څــو لاپـائے په دنيا د زړهٔ له رېشه خوشحال

**رېش**:- (رِي + ش) [ق.اس.مذ]ورېښنه. د ينبې ورېشلو کار.

**رېشا**:- (رِي + شا) [ق.ص] اعتباري سړے. هغه څوک چې د قرض پور په لينې دين کښې کره وي.

**رېشتلے**:- (رِي +ش + ت + لَے) [اپ.اس.مذ.ج.ريشتلي]و ــــــ راشتلے.

**ريشخند**:- (رِي+ش+خ+ن+د) [فا.اس.مذ]خندا. ټوقې. مسخرې. پشاړې. نخوال. ملنډې. ريژخندې. پچموزې.

هر سړے چې آئينه په لاس کښې خاندي

ګويا کاندي په خپل ځان پورې ريشخند رحمٰن بابا

**ريشخندي**:(رِي+ش+خَ+ن+دي)[فا.اس.مؤ]و ــــــ ريشخند.

چې حميد په کښې خندا که ريشخندي کا

ځاے د غم او د ژړا ده دا دنيا

**رېشل**:- (رِي + ش + ل) [اپ.مص مت] ورېشل. ورتل.

**رېشلے**:- (رِي + ش + لَے) [اپ.مف.مذ.ج. رېشلي. مؤ: رېشلې]ورېشلے. ورتلے

**رېښم**:-(رِي+ش+م) [فا. اس.مذ]ارېښم. برېښم. هغه تار چې د رېښو د چينجي د خېټې نه را وځي او د ځانه ئې تاووهي.

**ريشمال**:- (رِي + ش + ما + ل) [ف.مذ] ديوس. بې غېرت.

**ريشمالي**:- (رِي + ش + ما + لي) [ف.اس.مؤ] بې غېرتي. ديوسي.

**رېښمي**:- (رِي + ش + مِي) [فا. ص] رېښمن. د رېښمو. پوست. مهين. نوم.

**رېښنه**:- (رِي + ش + نه) [اپ.حمص] ورېښنه. ورتنه.

**رېشو**:- (رِي+ شو) [ف. پ.ص.مذ]دلوے ريش خاوند. ببر ږيرے. جب ږيرے.

**رېشونکے**:(رِي+شو+ن+کَے)[اپ.فاع.مذ.ج.رېشونکي.مؤ:رېشونکې]ورېشونکے. ورتونکے.

**رېښه**:- (رِي +شه ) [اپ.اس.مؤ.ج: رېښې](۱) وېخ. جړ. بنياد (۲) د ژغوني يا دوړې نوے تار.

ــــ **دواني کول**: – (ف تر ـــ)د چا خلاف پټ پټ تدبيرونه کول. يا په څهٔ کار کښې(په بدنيت) ګوتې وهل.

ــــ **رېښه کول**:- و ــــ رېښه رېښه کول.

ـــــ **رېښه کېدل**:-و ــــ رېښه رېښه کېدل.

**رېښتيا**:-(رِي+ش/خ+ت + يا) [اپ.اس.مؤ]رشتيا .رښتيا .د"دروغ". ضد.

**رېښکاره**:-(رِي+ش/خ+کا+ره )[ق.اس.مؤ.ج.رېښکاړے] د جوارو په وړې کښې د دانو قطار.

**رېښم**:- (رِي + ش / خ +م) [اپ.فا: ابرېشم. اِس.مذ] ورېښم. برېشم.

ــــ **چينجے**:-(رېښم+ چي+ن+جَے)[اپ.اِسص.مذ] درېښمويابرېشمو چينجے.

**رېښمين**:(رِي+ش/خ+مي+ن)[اپ.اِس.ص.مذ.(مؤ.و.رېښمينه.ج.رېښمينې)] رېښمين. برېشمين. درېښمونه جوړ. رېښمي څيز.

**رېښه**:- (رِي + شَه/خَه) [ق.اس.مؤ]ريشه. بنياد. مجازاً نسل. جرړه.

ـــ **ختل**:- اص.جوړه ايستلے کېدل. بنياد ختمېدل. بنياد وتل.

ـــ **کښل**:- اص. بيخ و بنياد اېستل. بالکل ختمول. جرړه ايستل.

ـــ **دکار رېښې ته لوېدل**: – اص . د څهٔ معاملې وېخ ته رسېدل. د کار په مفهوم پوهېدل.

**رېښه**:- (رِي+ شَه / خَه) [اس.مؤ] د زنانو د رېښم لګولو کار.

**رېښه**:- (رِ+ي+ شه/ خه) [اپ.اِس.مؤ.ج: رېښې](۱) چيرره.(۲) هغه رومال چـې د

واده په وخت ئې ناوې ته وركوي. مخ پټونے.

___ **وركول:-** (ق) اص. ناوې ته رومال يا مخ پټونے وركول.

___ **ريښه:-** (+ رِي + شَه/ خَه) [پ.ص] ريښې ريښې. ګارې وارې.

___ **كول:-** اص. ريښې ريښې كول. ګارې وارې كول. بدبد شلول.

___ **كېدل:-** اص. (۱) ريښې ريښې كېدل. ګارې وارې كېدل. (۲) بدبد شلېدل. ډېر زيات شلېدل.

**ريع:-** (رِي+ ع) [ع.مذ] پرسوب. جګ او چټېدنه.

**ريع:-** (رِي + ع) [ع.مؤ] دمحصول شرح. عام نرخ.

**ريعان:-** (ري+عا+ن) [ع.مذ] (۱) د څۀ څيز بهترينه حصه. ګوره برخه. (۲) زلمي توب. زلمله. زلمينه.

**ريفارم:-** (رِ+ي+ فا+ر+ م) [اَنګ.ف] اصلاح كول. درستول. تهذيب كول.

**ريفارمر:-** (ر+ي+فا+ر+م+ر) [اَنګ.اس.مذ.مو.ريفارمره: ج: ريفارمرې] اصلاح كوونكے. درستوونكے خصوصاً داخلاقو يا عقائدو اصلاح كوونكے.

**ريفائنري:-** (ری + فا +ئن + ري) [اَنګ. اسم. مو. ريفائنرياني] هغه كار خانه چې تيل وغېره په كښې صفا كولے شي.

**ريفريجرېټر:-** (ري+ف+ر+ج+ري+ټ+ر) يخه الماري. هغه اوسپنيسزه الماري، چې د خوراک څښكاك څيزونه په كښې يخ او محفوظ ساتلے شي. عموماً داختصار د پاره ورته فريج وائي.

**ريفرشمنټ:-** (ر+ي+ف+ر+ش+م+ن+ټ) [اَنګ. اس.مذ] تازه كېدل. داسې شے چې زړۀ د خوشحالولو او تفريح د پاره خوړلے يا څښلے شي.

**ري فل:-** (ري+ف+ل) په بال پائنټ قلم وغېره كښې د استعمال شوے څيز په ځاے نوے څېز كېښودل. د استعمال شوي څيز نوے بدل.

**ريف ناټ:-** (ری+ ف+نا+ ټ) [اَنګ. اس.مذ] د غوټې يو خاص قسم.

**ريفوز:-** (ری+ فَ+و+ز) [انګ(REFUSE)] انكار كول. نه منل. رد كول.

**ريک:-** (ر+ي+ک) [اَنګ.اس. مذ. ج: ريكونه] د كتابونو وغېره دپاره هغه وړوكے ميز يا الماري. چې دروازې نه لري.

**ريكاټ:-** و ___ ريكارډ نمبر ۲ او نمبر ۳ ريكاټې باجه (عو) ګراموفون.

**ريكارډ:-** (رِي+كا+ر+ډ) [اَنګ.اس.مذ.ج.ريكارډونه] (۱) ليكلے ياداشت. ميسل چې په كښې د يوې معاملې پوره تفصيل درج وي او محفوظ پروت وي. (۲) د ګراموفون يا ريكاټې باجې ككوړے. (۳) د لوبو وغېره په مقابله كښې د ټولو مقابله كوونكي نه زيات يا بره حد.

___ **ډغول:-** اص. په ګراموفون ركاټ يا ككوړے ډغول.

___ **قائيمول:-** (۱) د لوبو وغېره په مقابله كښې زيات نه زيات حد ته رسېدل. (۲) شانداره كارنامه ښودل.

___ **كول:-** اص. (۱) ليكل. ياداشت يا څۀ خبره په ليک كښې راوستل. (۲) سندرې يا خبرې د مشين په ذريعه په ټيپ كښې محفوظ كول. ټيپ كول.

___ **كېدل:-** اص. (۱) ليكلے كېدل. د ياداشت د پاره څۀ خبره په ليک كښې راوستل. (۲) سندرې يا خبرې د مشين په ذريعه په ټيپ باندې محفوظ كېدل ټيپ كول.

___ **ماتول:-** اص. د لوبې وغېره په مقابله كښې د پخوانو لوبغاړو په مقابله كښې زيات يا بره حد قائمول. د پخوانو لوبغاړو قائم كړي زيات نه زيات حد نه هم وراوښتل.

**ريكارډنګ:-** (ری+كا+ر+ډ+ن+ ګ) [اَنګ.اس] دريكارډ كولو كار. د سندرې ياد تقرير په ټيپ باندې د محفوظ كولو عمل.

**رېكټ:-** (ري+ک+ټ) [اَنګ.اس.ج. ريكټونه] د ټينس يا د بيډ منټن د لوبې اله. چې اوږد دستكے اوبيضوي جالكۍ لري چې غونډوسكے وغېره پرې وهلے كېږي.

**ري كونټ:-** (رِي+كو+ن+ټ) [اَنګ.ص] هغه خرڅ وغېره چې بيا بيا پېښېږي. بيا بيا مكرر واقع كېدونكے.

**ري كري ايشن:-** (ر+ی+ک + ای+ای+ش+ن) [اَنګ.ص] تفريح. دمه.

**ري كنډيشنډ:-** (ری+ک+ن+ډی+ش+ن+ډ) [اَنګ.ص] د زوړ موټر وغېره درستي. دوباره اصلاح كړے او سم كړے.

**ريكوري:-** (ر+ی+ک+و+ر+ی) [اَنګ.اس.مؤ] د واجب الادا رقم وغېره واپس وصولي. پستنه وصولي كول. وصولول.

___ **كول:-** اص. پستنه وصولي كول. واجب الادا رقم بيرته وصولول.

**رېګ:-** (رې + ګ) [فا.اس.مذ] شګه. خاوره.

عمارت په سر د رېګ په روان كاندې
هــر چې كاندي عمارت پــــه دا دنيا    رحمٰن بابا

___ **په خوله كېدل:-** اص. خاورې په خوله كېدل. ناكامياب كېدل.

**رېګاشه:-** (رې + ګا+شه) [پ(ظرف). اس.مؤ] سږګے.

___ **بومه:-** (رې+ګ+بو+مَ) [فا.اس.مؤ.ج:ريبومې] شګلوړ زمكه. شګلنه زمكه.

___ **روان:-** (رې+ګ+ر+وا+ن) [فاتر.اس ص. مذ] الوتونكې شګه. روانه شګه. هغه شګه چې وسېلې او باد سره اوړې راوړې. روانې شګې په صحراو كښې ځنې ځايونه داسې وي چې هلته تيزو بادونو سره وچې شګې الوزي او په مخه ځي خو ډېرې نه اوچتېږي. داسې ښكارې چې دا شګې په مخكښې رواني دي.

دا عالم رېګ روان دے كه ئې ګورې
خو هم هسې سره آوړي لاندې باندې    خوشحال

___ **ستان:-** (رې+ګ+س+تا+ن) [فا.اس.مذ.ج.رېګستانونه] داسې زمكه چې د خاورې په ځاے په كښې ټوله شګه وي. دَ شګو ميره. صحرا.

___ **مال:-** (رېګ+ما+ ل) [فا.اس.مذ] هغه څيز چې د اوسپنې نه پرې زنګ لرے كوي. شګ لوښے. هغه كاغذ يا غټه كپړه چې شګه يا د اوسپنې ذرې پرې لرے كوي او هغې سره د لرګي يا د اوسپنې څيزونو مخ صفا كوي.

___ **ماهي:-** (رې+ګ+ما+هي) [فا.اس.مذ] د شګې مهې يا كب يو قسم مهے چې ډېره موده د سمندر په غاړه د شګو لاندې پروت وي او وچ شي. په دارو كښې استعمالېږي.

**ريګولر:-** (ري+ګ+و+ل+ر) [اَنګ.ص] (۱) باقاعده (۲) هغه طالب چې باقاعده داخله ئې اخستې وي. (د پرائيوېټ په مقابله كښې) باقاعده. مستقل.

**ريل:-** (ر+ي+ ل) [ق.مص مت] د خر اواز كول.

**ريل:-** (رِي+ل) [اَنګ.اس.مذ.ج: ريلونه] (۱) د تار ګوټ. ګير ګاډے چې د ګنډلو تارونه تر ينه تاؤ وي. (۲) هغه ګر ګاډے چې د سنيما فلم وغېره تر ينه تاؤ كړے شوے وي.

**رېل:-** (رې+ ل) [اَنګ.اس.مذ.ج: رېلونه] (۱) (اصلاً) د اوسپنې پاټلۍ چې رېل ګاډے پرې ځي (۲) رېل ګاډے. د اور ګاډے.

**ريل كار:-** (ري+ل+كا+ر) [اَنګ.اس.مذ.ج: رېل كارونه] د رېل ګاډے داسې يوه يا دوه ډبې چې په كښې اينجن لګېدلے وي او هغه د رېل ګاډي په پاټلو چلېږي.

**ريلنګ:-** (ري+ ل+ن+ ګ) [اَنګ.اس.مذ] قطار. دا ندر پائې په شان هغه ولاړه جالۍ چې د پوړو په غاړه جوړ كړے شوې وي او خلق په پوړو ختو اوكوزېدو كښې پرې لاس ږدي. يا بالكنۍ ته مخامخ د حفاظت د پاره جوړه كړې شوې جنګله.

**رېلونے:-** (رې+ لو+نے) [ق.اس.مذ.و.ا.ج: رېلوني. مؤ: رېلونۍ] هغه

ورے(ګډورے) چې مور ئې مړه وي.

**رېلوے**:- (ري+ل+ وے) [اَنګ.اِس.مذ]رېلوائي. د رېل ګاډي سړک د رېلوائي محکمه.

___ **انجن**:-(رېلوے+اِ+ ن+ ج +ن) [اَنګ.اِس.مذج: رېلوے انجنونه]د رېل ګاډي اینجن چې ګاډے راکاږي یائي چلوي.

___ **ټائم ټیبل**:-(رېلوے+ټا+ئ+م+ټېس+ب+ل)[اَنګ.اِس.مذ]هغه کتابچې په کښې د رېل ګاډو د تلو او د راتلو وختونه لیکلي وي.

___ **سټېشن**:- (رېلوے + س + ټې+ ش + ن) [اَنګ.اِس.مذ]درېل ګاډي ټیشن. هغه ځاے چې چرته رېل ګاډے اودرېږي او خَلق ترې کوزېږي یا په کښې سورېږي.

**رېله**:- (رې + لهَ) [ق.اِس.مؤ.ج: رېلې]رودبار.

**ریلي**:- (رَي+ لِي) [اَنګ.اِس.مؤ] په یو ځاے جمع. د فوځ یا دسکاؤټونو غنډه.

**ریلے**:-(رِي+ لے) [اَنګ. مذ] د یو ریډیو سټېشن نه د بل ریډیو سټېشن پروګرام خورول یا نشر کول. یو پروګرام دوباره خورول یا نشر کول.

___ **کول**:- اِص.د یو سټېشن پروګرام د بل سټېشن نه دوباره نشر کول.

___ **کېدل**:- اَص.د یو سټېشن پروګرام د بل سټېشن نه دوباره نشر کېدل.

**ریلیف**:- (ر+ لِي+ ف) [اَنګ.مذ] امداد. ارام.قلارے

___ **فنډ**:-(ریلیف+ف+ن+ډ) [اَنګ.اِس.مذ]امدادی مال. جمع رقم یا پنګه.

___ **کیمپ**:- (ریلیف+ک+ِم+پ) [اِنګ.اس.مذ.ج:ریلیفکیمپونه] امداد یپړاؤ یا چاوڼی.

**ریم**:- (ر + م) [اَنګ.اِس.مذ.ج: ریمونه] د کاغذونو هغه بنډل چې شل د ستې یا ۴۸۰ تختې کاغذ په کښې وي. (پخوا به شل تختې په کښې سیواوې یعنی ۵۰۰ تختې).

**ریم**:- (رِي + م) [اپ.اِس.مذ] زوه.

د ویشتلي و صحت تـه امید اوشي
د پرهار ئې چې کمے اوشي له ریمه خوشحال

**ریمارک**:- (رِي+ما+ر+ک) [اَنګ.مذ] (۱) په څۀ څیز یا خبره باندې خپل خیال یا رای، څرګندول. (۲) هغه نوټ یا یاداشت چې خپله رای، ظاهر ولو د پاره په دفتري کاروای، کښې لیکلے شي.

**ریمان**:- (رِي+ ما+ن) [ق.اس.مذ.ج: ریمانونه] مرجان. رېړم.

**ریمانډ**:-(رِي+ما+ن+ډ) [اَنګ.مذ]د پولیس په حراست یا جېل کښې د ملزم بیا راتلل. د نیولونه پس ملزم څلیریشت ګنټې د پولیس په حراست کښې پاتے شي نو په صبا په عدالت کښې پیش کړے شي بیا د عدالت په اجازت پولیس دا ملزم د لسو نه تر څلیریشتو ورځو پورې د تفتیش او تحقیق په خاطر په خپل حراست کښې ساتلے شي. په دې مینځ کښې که مجسټریټ اوغواړي نو ملزم جېل ته هم استولے شي.

___ **اخېستل**:-اص.د ملزم د تفتیش د پاره پولیس د مجسټریټ نه میعاد اخېستل یا غوښتل.

___ **حاصلول**:- اص.د ملزم د تفتیش د پاره د مجسټریټ نه د پولیس میعاد حاصلول.

___ **ورکول**:- اص. پولیس ته د مجسټریټ له اړخه د ملزم د تفتیش د پاره میعاد ورکولے کېدل.

**ریمائنډ**:-(ري+ ما+ئي+ن + ډ) [اَنګ. مذ] یادونه. یادګیرنه. دوباره تقاضا .

___ **کول**: –اص.یادګیرنه کول. یاداشت کول. خبره وریادول.تقاضا کول.

**ریمائنډر**:- (ري+ما+ئی+ن+ډ+ر) [اَنګ.مذ.ج: ریمائنډرونه] د یادونې خط یا کاغذ د یادګیرنې چیټهی، یا رقعه. د اولنی، چیټهی، نه پس د یادونې دپاره بله چیټهی،.

___ **ورکول**: –د یادونې چیټهی، استول. تقاضا کول. د اولنی، چیټهی، نه پس د یادونې دپاره بله چیټهی، استول.

**رېمن**:- (رې+م+ ن) [ق.اِس.مذ (مؤ.وا : ریمنه.ج. ریمنې)] فائده من.

**رېمن**:- (رې +م+ن) [پ.ص]ګنده. غلیظه. خیرن پیرن. خراب.

___ **تـوب**:-(رې+م+ن+تو+ب)[پ.اِس.مـذ]رېمنتیا. رېمـن والـے. خیرنـوالے غلاظت. ګندګی،. خرابی،.

___ **تیا**:- (رې + م + ن + ت + یا) [پ.اِس.مؤ] و ___ رېمن توب.

___ **والے**:- (رې + م + ن + وا + لے) [پ.اِس.مذ]و ___ رېمن توب.

___ **ول**:-(رې+ م + نَ + و + ل) [پ.مص مت] خیر نول. ګنده کول. خرابوَل.

___ **ونه**:-(رې+م+ نَ + ؤ + نَه) [پ.حمص]خیرونه. ګنده کوونه. خرابوونه.

___ **وونکے**:(رې+م+نَ+وو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.ج:رېمنوونکي.مؤ:رېمنوونکې]خیرنوونکے. ګنده کوونکے. خرابوونکے.

___ **ېدل**:-(رې+م+نے+د + ل) [پ.مص لا] خیرنېدل. ګنده کېدل. خرابېدل.

___ **ېدنه**:-(رې+م+نې+د+نَ+ه)[پ.حمص]رېمنېدۀ. خیرنېدنه. ګنده کېدنه. خرابېدنه.

___ **ېدونکے**:-(رې+م + نې + دو + ن + کَے) [پ.مف.مذ.ج: رېمنېدونکي. مؤ: رېمنېدونکې] خیرنېدونکے. ګنده کېدونکے. خرابېدونکے.

___ **ېده**:- (رې+م + نې + و) [پ.حمص] و ___ رېمنېدنه.

**رینجه**:- (ر+ي+ن+ ج) [پ.اِس.مؤج: رینجې] د کپړې زړه ټکړه. چیر ړه. څیره.ریښه.

**رینځکه**: – (رِي+ن+جَ / ز + کَ+ه) [ق.اِس.مؤ.ج: رینځکې] یو قسم بوټے یا سبزي چې سرې پاڼې لري او د پسرلي په موسم کښې کېږي.

**رینځل**:- (رِي+ن+ج/ز + ل) [ق.مص] سخت په دستونو کېدل. د دستونو دارې وهل. ریخاړې وهل.

**رینځلے**:- (رِي + ن + ج/ز + لَے) [ق.مف.مذ.ج: رینځلي.مؤ: رینځلې]په دستونو لړلے.

**رینځن**:- (رِي + ن + ج + ز + ن) [ق. اس ص. مذ (مؤ.وا : رینځنه. ج: رینځنې] په دستونو شوے.

**رینځنه**:- (رِي + ن + ج/ز + نَ) [ق.حمص] دست کوونه.

**رینځه**:- (رِي + ن +ج/ز) [ق.اِس.مؤ.ج: رینځې] خړے دست.

___ **رینځے وهل**:- اص. دستونه کول.

**رېنډئیر**:- (ر+ې+ن+ډ+ی+ي+ر) [اَنګ.اِس.مذ] د هوسی، په شان یو ځناور چې سائبریا وغېره یخو واورینو ملکَونو کښې مونده شي.

**رینړ**:- (ري+ ن + ړ) [لهجه. ص.مذ] روڼ.

**رېنک**:- (رې + ن + ک) [اَنګ.اِس.مذ] عهده. منصب. مرتبه. درجه.

**رینګ**:- (رِي + ن + ګ)[اَنګ.اَس. مذ.ج: رینګونه] حلقه. (و ___ رِنګ)

**رینګټ**:- (رِي+ن+ګ+ټ) [پ. اس.مذ] د ژړا نرے نرے پرله پسې اواز. رینګ رینګے.

___ **وهل**:- اص. په نري اواز مسلسل ژړل. رینګه رینګه کول.

**رینګن**:-(ري+ن+ګ+ن) [پ.اس.مذ ـ مؤ.وا : رینګنه.ج: رینګنې] هغه سړے چې په نري اواز ژاړي او فریاد کوي. رینګه رینګه کوونکے.

**رینګه**:- (رِي+ن+ګ+ه) [پ.اِس.مؤ](۱) رینګه. په نري اوکمزوري اواز ژړا او فریاد. (۲) قطار. (ق)

___ **کول**:- اِص. په نري او کمزوري اواز ژړل . فریاد کول.

**د خبرې نه ___ جوړول**:- اص . خبره اوږدول.

**رینګے**:- (رِي + ن + ګَے) [پ.اِس.مذ] د ژړا نرے اواز.

**رینګېدل**:-(رِي+ن + ګې + د + ل) [پ.مص لا] (۱) په نري او کمزوري اوازژړېدل. رینګه رینګه کول. (۲) په ژړا ژړا څۀ شے غوښتل (د ماشومانو).

**رینګېدلے:** (ري+ن+ګې+د+لَے)[اِپ.مف.مذ.ج.رینګېدلي.مؤ.رینګېدلې] په ژړا شوے.

**رینګېدنه**:-(رِي+ن+ګې+د+ن+ه)[اِپ.حمص]رینګېدۀ. ژړا او فریاد کونه.

**رینګېدونکے**:-(رِي+ن+ګې+دو+ن+کَے)[اِپ.فاع.مذ.وا.ج: رینګېدونکي. مؤ: رینګېدونکې] په نري او کمزوري اواز ژړېدونکے. فریاد کوونکے.

**رینګېده**:-(رِي+ن+ګې+د+ه)[اِپ.حمص]و—— رینګېدنه.

**رینه**:- (رِي+نَ)[اِپ.اس.مؤ.ج: رینې] د چمیارا نو دیا موچیانو یو اوزار (یا کالے) چې ګنډ پرې کوي.

**رینے**:-(رِي+نَے)[اِق.اِس.مذ.ج: رېني. مؤ: رینې] هغه څاروے چې رنګ ئې سوربخن وي.

**رېو**:- (ري+و)[فا.اس.مذ]فریب. دوکه. مکر.حیله.

**ریوالور**:- (رِی+وا+لَ+و+ر)[اَنګ.اِس.مذ.ج.ریوالورونه] د تماچې هغه قسم چې کارتوسونه ئې په ګرارۍ کښې چورلي. ارهټي تماچې ملاماتې تماچه. د ګرارۍ تماچه.

**رېبودل**:- (رې+و+ؤ+ل)[اِق.مص مت]رېبل. پرېکول. لوکول.

**رېودل**:- (رې+و+ؤ+ل)[اِق.مص مت] پورته خېژول. ترقي ورکول.

**ریورس**:- (رِی+و+ر+س)[اَنګ.صف] شاته. په شا. مقلوب.

—— **کول**:- موټر ګاډے وغېره په شا بوتلل.

**رېوړۍ**:-(رې+و+ړ+ی)[ه.اس.مؤ.الیوړۍ.یو قسم شېریني یا خواږۀ. د چیني یا د ګوړې وړې وړې غنډې اوچپلټې ټکړې چې کونځلې پرې لګېدلې وي. تلونګړۍ (ګنډاپور)

—— **ویشل**:- په خلقو کښې رېوړۍ تقسیمول. خوشحالۍ څرګندول. متیاۍ ویشل.

**ریوک**:-(رِي+و+ک)[اِق.اِس.مذ.(مؤ.وا:ریوکه.ج: ریوکې)] هوښیار او چالاک هلک. نیغکے.

**ریوکے**:(رِي+و+کَے)[اِق.اِس.تصغیر.مذ.وا.ج.ریوکي.مؤ:ریوکې]چالاک. هوښیار.

**رېومے**:- ف (ري+و+مے)[اِپ(ظرف)اس.مذ] نامه د لاندې ویښته.

**رېون**:- (رې+ؤ+ن)[اِق.اِس.مذ](۱) جارو شوے. ریبځ شوے. (۲) د غوا د لوشلو طرز.

**رېوند**:- (رې+و+ن+د)[اِق.اِس.مذ]رېبند. راکوړ. زوېړ ناک.

—— **توب**:(رېوند+تو+ب)[اِق.اِس.مذ]رېوندتیا. رېوندوالے.کوړوالے.زوېړوالے.

—— **تیا**:- (رېوند+ت+یا)[اِق.اِس.مؤ] و —— رېوند توب.

—— **والے**:- (رېوند+وا+لے)[اِق.اَس.مذ]و —— رېوند توب.

**رېونده**:-(رې+و+ن+دَ)[اِق.اِس.مؤ]وېړناکه.عموماً د مزکې سره استعمالېږي. رېونده مزکه.

—— **زمکه**:- (رې+و+ن+د+ز+م+ک+ه)[اِپ.اس ص.مؤ]هغه زمکه چې یو طرف ئې لوړ وي بل ئې ژور وي. زوېړناکه زمکه.

—— **لار**:- (رې+و+ن+د+لا+ر)[اِق.اِس ص.مؤ] کږه وږه لار. هغه لار چې په کښې زوېړونه وي.

—— **لیکه**:- (رې+و+ن+د+لي+که)[اِق.اِس.مؤ] کږه کرښه.

—— **ول**:- (رې+و+ن+د+و+ل)[اِق.مص مت]رېبندول. راکږول. په ترخ کول. څنګزن کول.

—— **بدل**:- (رې+و+ن+دې+د+ل)[اِق.مص لا]رېبندېدل.راکږېدل.په ترخ کېدل. څنګزن کېدل.

**رېوهل**:- (رې+و+ه+ل)[اِق.مص مت] فکر کول. سوچ کول.

**ریویژن**:- (رِي+وي+ژ+ن)[اَنګ.اِس.مذ] دوباره کتنه. دویم نظر اچونه. نظرثاني کول.

**ریونیو**:- (رِي+و+نو)[اَنګ.مذ] مالیه.

—— **افسر**:- (ریونیو+ا+ف+س+ر)[اَنګ.اِس ص.مذ] افسر مال.

**ریویو**:-(رِي+وي+و)[اَنګ.مذ](۱)نظر ثاني. په دویم نظر کتنه. دوباره کتنه. (۲) تبصره. معائنه.

—— **کول**:- اص. په څۀ کتاب، رساله یا مضمون وغېره خپله رائې ظاهرول. تبصره کول. درائې څرګندونه.

—— **کېدل**:- اص. په څۀ کتاب وغېره نظرثاني کېدل.تبصره کېدل.

**رېیي**:- (ر+یيي)[الهجه.ص] رهي. مسافر. لاروے.

—— **کول**:- اص. رهي کول. په سفر یا لار روانول.

—— **کېدل**:- اص. رهي کېدل. روانېدل. په سفر روانېدل.

**رېیے**:- (ر+یے)[اِق.اِس.مذ] رواش. پېښې.

**رېیدل**:-(ر+یي+د+ل)[اِق.مص لا](۱) د خر هنېدل. (۲) مجازاً په برق برق خندل.

**رېیدلے**:- (ر+یيې+د+لے)[اِق.مف.مذ.ج: رېیدلي. مؤ: رېیدلې] هنېدلے.

**رېیدنګ**:- (ر+یيې+د+ن+ګ)[اِق.حمص] و —— رېیدنه.

**رېیدنه**:-(ر+ی+د+ن+ه)[اِق.حمص](۱) رېیدنګ. هنېدنه. د خر اواز. (۲) په زوره یا په برق برق خندا کونه.

**رېیدونکے**:(ر+یي+دو+ن+کَے)[اِق.مف.مذ.ج.رېیدونکي.مؤ:رېیدونکې] هنېدونکے. په ډېره زوره خندا کوونکے.

**رېیده**:- (ر+ئیې+د+ه)[اَف: په (قاموس).حمص] و —— رېیدنه.

**رئیر**:-(ر+ي+ي+ر)[اَنګ.صف] وروستو. وروستنے. د لاندې درجې. (عموماً نورو لفظونو سره استعمالېږي).

—— **اېډمرل**:-(رئیر+ا+ې+ډ+م+ر+ل)[اَنګ.اِس.مذ] نائب امیرالبحر. د سمندري فوځ دویم لوے افسر.

—— **ګارډ**:-(رئیر+ګا+ر+ډ)[اَنګ.اِس.مذ]د لښکر وروستنۍ برخه. موخرۀ الجیش.

◈◈◈

# ړ

**ړ**:- (ړې) [فا.اس.مؤ.ج: ړې ګانې]د پښتو حروف تهجي اوولسم توری او د اردو پنځلسم توری دی. ابجدو په حساب کښې ئې قیمت د لاړ برابر دی یعني (۲۰۰) بغیر د پښتونه د نورو ژبو په سر کښې نه راځي.

**ړانجړۀ**:- ( ړا + ن +ج+ ړۀ) [ق.اِس.مذ.ج] رنجړۀ. رانځړۀ. ړانزړۀ. زرےۀ. د تارپین تېل.

**ړانځړه**- (ړا+ن+ځ +ړ+ۀ) [ق.اِس.مذ.ج] و ـــــ ړانجړۀ.

**ړانده**:- ړا + ن + د+ۀ) [پ.اِس.مذ.ج.وا:ړوند] دړوند جمع. هغه څوک چې د سترګو نظرئې نۀ وي.

کافران واړه ړاندۀ ؤ بې طبیبه
شریعت ئې د ړندو سترګو دمه وه — خواجه محمد بنګش

**ـــــ کول**:- د سترګو نه معذوره کول. نابینا کول. ړندول.

که زما په خولۀ شي خدا ے دے
زر ړانـــدۀ کانـدي خـبـيـــث! — خوشحال

**ړانزړه**:- (ړا+ن+ز+ړ+ۀ) [ق.اِس.مذ.ج] و ـــــ ړانجړه.

**ړبن**:- (ړ+ب +ن) [ق.اِس.مذ][(مؤ.وا.ړبنه.ج: ړبنے)]ړیجن. ړیجن. هغه څوک چې د خولې نه ئې هر وخت لاړې بهېږي.

**ړپ**:- (ړ+پ) [پ.اِس.مذ](۱) نرمه نمجنه خاوره. (۲) سلپنداره ماده. زوه (۳) څۀ خوندناک مزیدار څیز په کتوپه خولۀ کښې اوبۀ راتلل. (۴) اوبو کښې لاس وهلو سره پېدا کېدونکے اواز. (۵) تېنګ شربت. (۶) سره وینه.

**ړپ ړپ**:- (ړ+پ+ړ+پ) [پ.اِس صو. مذ]د اوبو د ښپېړې خوړلو اواز .

**ـــــ کول**:- اِص۔ د اوبو د ښپېړې خوړلو اواز.

**ـــــ کېدل**:- اِص۔ د اوبو ښپېړو خوړلو اواز کېدل۔ د ړپېدلو اواز راتلل.

**ړپند**:- (ړ+پ+ن+د) [پ.اِس ص. مذ] نرم او نمجن څیز.

**ړپول**:-(ړ+پ+و+ل) [پ.مص](۱)اوبو ته حرکت ورکول چې اواز ترې پېداشي. (۲) ژبه د تالو سره لګولو سره اواز پېدا کول.

**ړپولے**:- (ړ+پَ+و+ لَے) [پ.مف.مذ.ج: ړپولي. مؤ: ړپولې]حرکت ورکړے شوے (داوبو په شان نرم څیز ته.

**ړپونګ**:- (ړ+پ+ و+ ن + ګ) [ق.حمص]و ـــــ ړپونه.

**ړپونه**:-(ړ+پ+و+ نَه) [پ.حمص] ړپونګ. ړپول.حرکت ورکوونه. (داوبو په شان نرم څیزته.)

**ړپوونکے**:- (ړ+پَ+وو+ ن+ کَے) [پ.فاع.مذ.ج: ړپونکي. مؤ: ړپوونکې] (۱) اوبو ته حرکت ورکوونکے. (۲) ژبې ته تالو سره حرکت ورکوونکے.

**ړپېدل**:- (ړ+پ+ې+ د+ل) [پ.مص لا] د بل څیز په حرکت داوبو ښپې خوړل او حرکت کول چې اواز هم ورسره شامل وي)

**ړپېدلے**:-(ړ+پې+د+ لَے) [پ.مف.مذ.ج: ړپېدلي. مؤ: ړپېدلې] اوبۀ په ښپو شوے (دبل څیزپه حرکت)په حرکت کښې راغلې اوبه.

**ړپېدنګ**:- (ړ+ پې+ د+ن + ګ) [ق.حمص]و ـــــ ړپېدنه.

**ړپېدنه**:- (ړ+ پې + د + نَ+ه) [پ.حمص]ړپېدنګ. ړپېدۀ. د بل څیز په حرکت سره د اوبو ښپې وهنه چې اواز هم ورسره شامل وي.

**ړپېدونکے**:-(ړَ+پې+دو+ن+کَے)[پ.مف.مذ.ج:ړپېدونکي.مؤ: ړپېدونکې]په ښپو کښې حرکت کوونکے.

**ړپېده**:- (ړَ + پې + ده) [پ.حمص]و ـــــ ړپېدنه.

**ړت**:- (ړ + ت) [ق.اِس.مذ.مؤ. وا: ړته. ج: ړتې](۱) داسې څیز چې داندازې نه زیات او بې ډوله وي. (۲) سوربخن رنګ. لکه ړت غوایۀ. یا ړته ږیره.

**ړت**:- (ړ+ت) [ق.اِس.مذ] نارنجي رنګ.

**ړچ**:- (ړ+ چ) [ص.مذ](مؤ. وا: ړچه ج: ړچې) [لړزه. لړزا. ریندې. ر ږېدنه]

**ـــــ راتلل** (په چا) (ړچ. را+ت + ل + ل) (۱) لړزه راتلل. ریندې. لګېدل. (۲) ویرې اخېستل۔ دویرې لړزېدل.

**ړچند**:-(ړ+ چ + ن + د ) [پ.ص.مذ.(مؤ. وا: ړچنده.ج: ړچندې] لړزېدونکے. ډېر خوځېدونکے. حرکت کوونکے۔

**ړچول**:-(ړَ+چَ+ و + ل) [پ.مص] لړزول. خوځول. حرکت ورکول۔ ړقول. ړکول.

**ړچولے**:-(ړَ+ چَ + و+ لَے) [پ.مف.مذ.ج: ړچولي. مؤ: ړچولې] لړزولے. خوځولے

**ړچونګ**:- (ړَ + چَ + و + ن + ګ) [ق.حمص]و ـــــ ړچونه۔

**ړچونه**:-(ړ+چَ+و+نَ+ه) [پ.حمص] ړچونګ. لړزونه. خوځونه. حرکت ورکوونه.

**ړچوونکے**:(ړَ+چَ+وو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.ه.ج:ړچوونکي.مؤ:ړچوونکې] لړزوونکے. خوځوونکے.

**ړچېدل**:- (ړ+چې+د+ل) [پ.مص لا]لړزېدل. ړپېدل. خوځېدل.

**ړچېدلے**:- (ړ+ چې+ د + لَے) [پ.مف.مذ.ه.ج: ړچېدلي. مؤ: ړچېدلې] لړزېدلے. ړپېدلے. خوځېدلے.

**ړچېدنګ**:- (ړ+ چې+ د+ن+ ګ) [ق.حمص]و ـــــ ړچېدنه.

**ړچېدنه**۔ (ړ+چې+د+نَه)[پ.حمص] ړچېدنګ. ړچېدۀ. لړزیدنه .ړپېدنه . خوځېدنه.

**ړچېدونکے**:(ړ+چې+دو+ن+کَے)[پ.مف.مذ.ه.ج:ړچېدونکي.مؤ:ړچېدونکې] لړزېدونکے. خوځېدونکے. ړپېدونکے.

**ړچېده**:- (ړ + چې+ دۀ) [پ.حمص]و ـــــ ړچېدنه.

**ړخبنے**:- (ړ+ خ + ب + نَے) [ق.اس.مذ.ه.ج: ړخبني] دکټ بازوګان یا پټې.

**ړزول**:- (ړ + ز + و+ ل) [ق.مص] د څناورو تېل وغېره سره دارو درمل کول.

**ړزولے**:-(ړ+ز+و+لے)[ق.مف.مذ.ه.ج: ړزولي. مؤ: ړزولې] د څناورو تېل وغېره سره علاج کړے.

**ړزونه**:- (ړ+ز+و+نه)[ق.حمص]د څناورو تېل وغېره سره علاج کونه.

**ړزوونکے**:-(ړَ+ ز + وو + ن + کَے) [ق.فاع.مذ.ه.ج: ړزوونکي. مؤ: ړزوونکې] د څنا ور تېل وغېره سره علاج کوونکے.

**رزېدل**:- (رَ + زې + د + ل) [ق.مص.لا] تبل وغېره سره د ځناور علاج کېدل.

**رزېدلې**:-(رَ+زې+د+لَے)[ق.مف.مذ.ه.ج: رزېدلي. مؤ: رزېدلې]هغه ځناور چې تبل وغېره سره ئې علاج شوے وي.

**رزېدنه**:-(رَ+زې + د +نَه) [ق.حمص]د ځناور تبل وغېره سره علاج کېدنه.

**رزېدونکے**:- (رَ+زې+د و+ن+کَے)[ق.مف .مذ.ه.ج.رزېدونکي .مؤ: رزېدونکې ] هغه ځناورچې د تبل سره ئې علاج کېږي.

**رزېده**:-(رَ + زې+ دهٔ) [اَف: پ(قاموس) حمص]و ــــ رزېدنه.

**رق**:-(رَ+ق)[پ.فا.لق.اس.مذ.(مؤ.وا:رکه.ج:رکې)]لړزه.خوځېدنه. رپېدنه.رپا.

**رقول**:-(رَ+قَ+ و + ل) [پ.مص]د کاغذ يا د مائع څيز خوځول. لړزول. رکول.

**رقولے**:- (رَ + قَ + و + لَے) [پ.مف.مذ.ه.ج: رکولي. مؤ: رکولې]د مائع څيز يا کاغذ وغېره په حرکت کښې راوتلے شوے. خوځولے. لړزولے.

**رقونه**:-(ر+ق+و+نَ+ه)[پ.حمص] د مائع يا دکاغذواغېره خوځونه.لړزونه. په حرکت کښې راوستنه.

**رقوونکے**:-(ر+ق+وو+ن+کَے) [پ.فاع.مذ.ه.ج: رکوونکي. مؤ: رکوونکې]دمائع څيز(ياکاغذوغېره)په حرکت کښې راوستونکے.لړزوونکے.خوځوونکے.

**رقېدل**:-(ر+ قې+د+ل) [پ.مص لا د مائع څيز. يادکاغذ وغېره) په حرکت کښې راتلل (چې اواز هم ورسره وي)۔ لړزېدل. خوځېدل.

**رقېدلے**:-(رَ+قې+د+لے)[پ.مف.مذ.ه.ج:رکېدلي.مؤ:رکېدلې]لړزېدلے۔ خوځېدلے. په حرکت کښې راغلے. (مائع څيز يا کاغذ وغېره)۔

**رقېدنه**:- (ر+ قې+د+نَه) [پ.حمص]د مائع څيز (يا د کاغذ وغېره) په حرکت کښې راتلنه (چې اواز هم ورسره وي) لړزېدنه. خوځېدنه.

**رقېدونکے** :-( رَ + قې + دو + ن + کے ) [پ.مف. مذ.ه.ج.ر کېدونکي. مؤ: کېدونکې] لړزېدونکے. خوځېدونکے .مائع څيز يا کاغذ وغېره).

**رک**:- و ــــ رق.

**رکول**:- و ــــ رکول.

**رکولے**:- (ر+ق+و+لے) و ــــ رقولے۔

**رکونه**:- و ــــ رکونه۔

**رکوونکے** :-و ــــ رکوونکے۔

**رکېدل**:- و ــــ رکېدل۔

**رکېدلے**:- ــــ و ــــ رکېدلے.

**رکېدنه**:- و ــــ رکيدنه۔

**رکېدنګ**:- ر+ کې+ د+ن + ګ) و ــــ رکېدنه.

**رمبزيز**:- (ر+م +ب+زِي+ز) [ق.اس.مذ] رومبزيز. په اول ځل لنګه شوې غوا وغېره . هغه ځناورچې اول ځل ئې بچے راوړے وي.

**رمبوسه**:- (ر+م + بو+س+ه) [ق.اس.مؤ] توب. لتيې. اوګره.

**رمبے**:- (ر + م + بے) و ــــ رومبے۔

**رنجه**:-(رَ+ن+جه)[ق.اس.مؤ.ه.ج:رنجې]دغابنونو زيله ياجرړه دغابنونو بنسټ.

**رندتوب**:(رَ+ن+د+تو+ب)[پ.اِس.مذ]رندتيا.روندوالے.رندښت.رندون. نابينائي. دسترګو معذوري.

**رندتيا**:- (ر+ن + د+ت + يا) [پ.اِس.مؤ]و ــــ رندتوب.

**رندښت**:- (ر+ن +د+ ش/خ + ت) [پ.اِس.مذ]و ــــ رند توب.

**رندکے**:-(رَ+ن+د+کے)[پ.اِس.مذ.مؤ:رندکۍ]رندونکے.د روند سړي دپاره سپک نوم.

**رندوکے**:-(رَ+ ن+دو+کَے)[پ.اس.مذ.ه.ج:رندوکي.مؤ:رندوکې]و ــــ رندکے۔

**رندول**:- (رَ + ن + دَ + و + ل) [پ.مص]روندکول. بينائي ختمول. د سترګو نه معذوره کول.

**رندول**:- (څۀ پسې) د چا نه هغه څيز منع کول کوم چې د هغۀ ډېر خوښ وي. عموماً طنزاً وايه شي. لکه ستا دا فلانے څيز ډېر خوښ دے خوزۀ به ورپسې روند کړم: (يعني دربه نۀ کړم)

**رندون**:- (رَ + ن + دو + ن) [پ.اِس.مذ] و ــــ رند توب۔

**رندونګ**:- (رَ + ن + دَ + و + ن + ګ) [ق.حمص]و ــــ رندونه۔

**روندونه**:-(ر+ن+دَ+ؤ+ن+ه)[پ.حمص] روندکونه. نظر(بينائي) ختمونه.

**رندوونکے**:-(ر+ن+دَ+وو+ن+کَے)[پ.فا.مذ.ه.ج:رندوونکي.مؤ: رندوونکې] نظر (بينائي) ختموونکے. نابينا کوونکے.

**رنده**:- (رَ + ن + دَ+ه) [پ.اِس.مؤ.ه.ج: رندې](۱) هغه ښځه چه بينائي نه لري. د روند مؤنث صيغه. دسترګو نه معذوره ښځه. (۲) طنزاً بينا ښځې ته هم وئيلے شي چې سره د نظره څۀ څيز نه وي.

**رنده چرګه**:-(رنده+چ+ر+ګَه)[پ.اِص.مؤ](۱)يوخاص قسم سالن چې بغېردغوښې نه ئې پخوي. (۲) ځني خلق چې تش شنه مرچکي په غوړو کښې سرۀ کړي او مالګه مصالحه په کښې واچوي. دې ته هم رنده چرګه وائي.

**رنده مره**:- (رنده+م+ګ+ه) [ق.اِس ص.مؤ]يو قسم کر بوړے.

**رنده مېرې**: (رنده+مې+ګي+رۍ)[پ.اِس.مؤ.ج:رنده م ېرې]يوقسم کربوړے.

**رندېدل**:-(رَ+ن+دې+د+ل)[پ.مصلا]دسترګوبينائي ختمېدل.دسترګونظرنۀ پاتې کېدل. دسترګو نه معذوره کېدل. نا بينا کېدل.

**رندېدل**:- ( څۀ پسې)د څۀ څيز بې حده ډېراشتياق لرل.

**رندېدنګ**:- (ر+ن+دې+د+ن+ګ) [ق.حمص]و ــــ رندېدنه۔

**رندېدنه**:-(ر+ن+دې+د+نَه)[پ.حمص]رندېدنګ.رندېدۀ.دسترګوبينائي ختمېدنه

**رندېدونکے**:(ر+ن+دې+دو+ن+کَے)[پ.مف.مذ.ه.ج:رنديدونکي.مؤ: رندېدونکې] د سترګو نه معذوره کېدونکے. نابينا کېدونکے.

**رنديده**:- (رَ+ن+دي+دهٔ) [پ.حمص]و ــــ رندېدنه.

**رنګ**:-(رَ+ن+ګ) [پ.ص.مذ (مؤ.وا: رنګه.ج: رنګې] تباه برباد. ويران پريوتے. غورځېدلے کوريا عمارت وغېره۔

**رنګبنګ**:-(ر+ن+ګ+ب+َن+ګ)[اس ص.مذ(مؤ.وا:رنګه بنګه.ج:رنګې بنګې] (۱)مست.په نشه کښې پريشانه. (۲) نازنخرې سره ګرځېدل. په نخرو پېښوپوپ کول.

ــــ **تلل**:- اص.(۱) ناز نخرې سره ګرځېدل. په مکيز مکيز تلل. (۲) په نشه کښې کوږ ووږ تلل.

**رنګتوب**:- (ر+ن + ګ+ تو+ب) [پ.اِس.مذ]رنګتيا. تباهي. بربادي۔

**رنګرې**:-(ر+ن + ګ+ ر + ۍ) [ق.اِس.مؤ]د چيلم نچه.

**رنګرے**:- (ر+ن+ ګ +رَے) [اس.مذ.مؤ]رنګرې. ببل ببل. يواځې يواځې۔

**رنګوالے**:- (رَن +ګ+وا+لَے) [ق.اِس.مذ]روانوالے.

**رنګول**:-(ر+ن+ګ+َو+ل)[پ.مص](۱) ورانول. تباه کول.(۲) ابادي(کور عمارت وغېره) راغورځول.

**رنګونګ**:- (ر+ن+ګَ+ؤ+ن+ګ) [ق.حمص]و ــــ رنګونه۔

**رنګونه**:-(رَ+ن+ګَ+ؤ+نَه)[پ.حمص]دابادۍ د کور يا عمارت وغېره غورځونه. نړونه رنګونګ. ورانونه. تباه کونه.

**رنګوونکے**:(رَ+ن+ګ+وو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.ه.ج:رنګوونکي.مؤ:رنګونکې] ورانوونکے. تباه کوونکے. (دابادۍ) نړوونکے.

**رنګې**:- (ر+ن+ګ+ئی)[ق.اِس.مذ]لنګې. لونګې. ريښمين دستار.

**رنګے**:- (ر + ن + ګے) [ق.اِس.مذ](۱) تنګ.(۲) رينګټ. د ژړا اواز.

**رنګېدل**:-(ر + ن + ګې+ دل) [پ. مصلا (۱) نړېدل .رغورځېدل. (دابادۍ) (۲) ورانېدل. بربادېدل

**رنګېدنګ**:- (ړَ+ن+ګي+دَ+ن+ګ)[ق.حمص]و_____ ړنګېدنه.

**رنګېدنه**:-(ړَ+ن+ګي+د+نَه)[اپ.حمص]ړنګېدۀ. نړېدۀ. ورانېدنه. بربادېدنه. تباه کېدنه. ړنګېدنګ.

**رنګېدونکے**:(ړ+ن+ګي+دو+ن+کَے)[اپ.مف.مذ.ه.ج:ړنګېدونکي.مؤ: ړنګېدونکے] نړېدونکے. ورانېدونکے. بربادېدونکے. تباه کېدونکے.

**رنګېده**. (ړ+ن+ګي+ده) [اپ.حمص]و_____ ړنګېدنه.

**رواندے**:-(ړ+وا+نده) [اپ.ص](وړاندي.وړاندې) مخ کښې. مخې ته. مخامخ. (نورالفاظ د وړاندي لاندې وګورئ)

**روز**:-(ړو+ز) [اپ.اس.مذ]اتوب. لېټي. اوګره.

**روکے**:- (ړو +کَے) [کشر هلک یا زلمي ته د مینې په طور مخاطب کولو د پاره وئیلے شي. اے وړوکیه:

**رومبنے**:- (ړو+م + بَ + نے) [اپ.ص.مذ.ه.ج:ړومبني. مؤ: ړومبنۍ](۱) اولنے. هغه څیز یا کس چې د نورونه وړاندې وي. ۲) تېر شوے. پخوانے. (لکه رومبني خلق یا قومونه).

**رومبے**:- (ړو+م +بے) [اپ.ص.مذ.ه.ج ړومبي. مؤ: ړومبۍ] اول .مخ کښې . اولنے وړاندې تلونکے.

تل وړومبے د روستي پل دې ترې تېرېږي
کړے نۀ دے چا پۀ پُل باندې قرار — رحمٰن بابا

_____ **کول**:- اص.اول کول. په اول نمبر راوستل. مخ کښې کول.

_____ **کېدل**:-اِص. اول کېدل. مخ کښې کېدل. وړاندې کېدل. په اول نمبر راتلل.

**رومبۍ خور**:- (ړو+م+ب+ئي+خو+ر) [اپ.اس معرفه. مؤ] د اسلامي کال دریمه میاشت. ربیع الاول.

**رومبۍ میاشت**:- (ړو+م +ب+ ئي +م +یا+ ش+ ت) [اپ.اس ص. مؤ] اوله میاشت.د اسلامي کال اوله میاشت محرم.

**رومبے**:-(ړو+م + به) [اپ.صف.مذ. مؤ: ړومبۍ]اولنے. وړاندې تلونکے.

تل وړومبے د دور دستي پل په دے پرې تېرېږي
کړے نۀ دے چا پۀ پُل باندې قرار — رحمٰن بابا

**روند**:- (ړو+ن+د) [اپ.اس ص. مذ. ه.ج: ړاندۀ. مؤ.وا: ړنده.ج: ړندې] هغه څوک چې د سترګو نظر ئې نۀ وي. د سترګو نه معذوره نابینا.

ړوندے بهتر دے چې څۀ نۀ ویني په سترګو
چې نۀ سترګې پۀ پردي حرام کا وا — رحمٰن بابا

_____ **پسې تلل**:- لفظي معني واضح. مجازاً د داسې سړي نه رهنمائ اخېستل چاته چې په خپله هم لار نه ښکاري یا نۀ وي معلومه.

_____ **ته ګډاکول یا ګډېدل**:- بې فائدې کار کول. خو شي خواري کول.

_____ **ته ګډېدل**:- عبث کار کول. په داسې کار ځان سترے کول چې فائده ترې نۀ ځاصلېږي _____ حساب (و_____ ړنده کاته)

_____ **خونه ئي**:- (محاوره)دتنبیه په طور هغے سړي ته وئیلے شي چې په لاره کښې چاسره ډغره وخوري یا تینډک وخوري.

_____ **شې**:- د ښېرې جمله. د تنبیه دپاره وئیلے شي. خصوصاً هغه سړي ته چې یو څیز ئې په خوا کښې موجود وي او هغه ئې نۀ ویني یا هغے سړي ته څوک چې غلط کار وکړي څوک چې کار کښې فکر او احتیاط نۀ کوي.

_____ **کوڼ کېدل**:- لفظي معني واضح دي. مجازاً دروغ - دسړي عقل فهم نۀ پاتې کېدل. په نفع نقصان نۀ پوهېدل او داسې کار کول چې په کښې ضرر یا نقصان وي.

_____ **کېدل**:- په سترګو معذوره کېدل. نظر نۀ لګېدل. ړندېدل. نابینا کېدل.

و خپل عېب وته روند شوے
د پردي عېب جاسوسه — خوشحال

**د روندو باچاهي**:-هغه ملک، اداره یا دفتر وغېره چې دداسې کس په لاس کښې وي چې د ښۀ اوبد حق ناحق تمیز په کښې نۀ وي.

**د_____ د لاس عصاء**:-د ړندو مددګار. ړوندو ته لار ښودونکے.

محمد د ګمراهانو رهنما دے
محمد دے د ړندو د لاس عصاء — رحمٰن بابا

**د_____ ښځه**:- روند سړے د خپلې ښځې ساتنه اونګرانی نۀ شي کولے. ځکه وائي چې د روند ښځه په خداے سپارلې. د داسې کار په حقله وئیلے شي چې نګراني او واک اختیارئې د بل په لاس وي.

**د_____ عصایا هما**:-هغه لرګے چې روند سړے پرې خپله لار ځان ته سموي. هغه کس چې د بل (روند یا ضعیف) امداد کوي.

**د_____ غرګے**:- (و_____ د روند ګذار)

**د_____ ګذار**:- د روند سړي په اواز پسې یا هسې په توکل ګذار کول. په توکل ویستلے ګذار. بې یقینه خبر یا کار (چې که نتیجه ئې درسته وخېژي نو ښه په ښه، ګني که خطا شي نوافسوس ئې نۀ وي). د روند هاتي هغه کار چې صحیح معلومات ئې نۀ وي. د چا په ذهن یا په پوهه کښې چې څۀ رنګ راځي هغه شان ئې ګڼي -

(وئیلے شي چې ځینو ړندو د باچا نه خواست وکړو چې مونږ ته هاتي وښایه. باچا ورته هاتي راوغوښتو چې هاتي داد ے. هاتي وګورئ ړاندۀ وروړاندې شول چې په خپلو لاسونو ئې محسوس کړي. د چا په لاس ئې خوړتم ورغلو. د چاپه لاس ئې لکۍ ورغله. د چا لاس ئې په پښو برابر شول. د چا لاس سر او غوږونو ته ورسېدو. چا ورله په خېټۀ لاسونه وهلو. په اخر کښې ترینه باچا تپوس وکړو چې اوس اوواېو چې هاتي څنګه وۀ. یو په کښې ووې چې پوست موست اوږد شے دے. لکه غټ ښامار. بل ووې چې غټ ښاما ر نۀ وۀ. د نري مار په شان وۀ. بل په کښې ووې چې د کوټې د ستنو په شان وۀ. بل ووې دلوے پوزي په شان وۀ. بل ووې چې دا خود لوئې کوټې په شان وۀ. ددې نه د "ړندوهاتي" یو مثال وګرځېدو).

**رنده ائینه**:- هغه ائینه چې تته شوې وي او مخ په کښې (سم) نۀ ښکاري. تته شوې یا خرابه شوې ائینه.

**رنده باچاهي**:- هغه باچاهي چې په کښې د ښۀ او بد تمیز نۀ وي. بې انصافي. ناپرساني. د یو دفتر یا اداري وغېره بد انتظامي. څوک چې څۀ غواړي هغه کوي او تپوس یو ښتنه ئې نۀ وي.

**رنده شیشه**:-(۱) هغه خاص قسم شیشه چې رڼا په کښې راځي خو د بهر نه دننې څیزونه په کښې نۀ ښکاري.

**رنده کاته**:- هغه کاته یعني د حساب کتاب چې د لیکونکي په اختیار کښې وي او څوک ئې د درست او غلط کتنه نه کوي.

**مورزالے روند**:- د موره روند پېدا شوے. پېدائشي روند.

**روندا**:- (ړو+ن+دا) [ندائیه] هغه سړي ته طنزاً وئیلے شي څوک چې په ړندو سترګو څۀ څیز نۀ ویني.

**روندچرګ**:-(ړو+ ن + د + چ+ ر+ګ) [ق.اس.مذ]د ماشومانو یوه لوبه ده.

**روندوالے**:-(روند+وا+لَے) [اپ.اس.مذ] دسترګو معذوري. ړندوالے. نا بینائ.

**روندول**:-(ړو+ن+د+و+ل) [اپ.مص مت] د سترګو نه معزوره کول. ړندول.

**روندونه**:- (ړو+ ن+ دَ+ و+ ن+ه) [اپ.حمص]ړندونه. دسترګو نه معذوره کوونه.

**روندوونکے**:-(ړو+ن+د+ وو+ن+کَے) [اپ.فاع.مذ. ه.ج: ړوندوونکي. مؤ: ړوندوونکې] دسترګو نه معذوره کوونکے. ړندوونکے. نا بینا کوونکے.

**روندېدل**:- (ړو+ن+دې+د+ل) [اپ.مص لا] ړندېدل. په سترګو معذوره کېدل. نابینا کېدل.

**ړوندېدنه**:-(ړو+ن+د ے+ؤ+نَه) [پ.حمص]ړوندېدۀ. ړندېدنه . په سترګو معذوره کېدنه. نابینا کېدنه.

**ړوندېدونکے**:-(ړو+ن+د ے+دو+ ن + کَے) [پ.مف.مذ.ه.ج: ړوندېدونکي. مؤ: ړوندېدونکې]ړندېدونکے. نابینا کېدونکے.

**ړوندېده: –** (ړو+ن+د ے+ د) [پ.حمص]و ـــــ ړوندېدنه.

**ړه**:- (ړ (ه)) (اسم. مذ) د زړۀ مخفف دے. عام په استعمال کښې راځي.

خـــويــــو ړۀ پــــړۀ نـــاســـاز در کـا

په مانۍ کښې نۀ دعوې کاندې اغازې      خوشحال خان

**ړے**:- (ړَې) [پ(ظفر).اِس.مذ] ایرړے ګله. هیرړے.

**ړے**:- (ړَې) [ق.اِس.مذَ] فوځ.

**ړي**:- (ړي) [ق.اس.ص.مؤ]د ځاروۀ (ځناورو)دشړلود پاره دا اواز کولے شي.

**ړیمباخه**:- (ړي+م +با+خَه) [ق.اس.مؤ] زړه ورسته کېږه.

**ړینګے**:- (ړِي+ن+ ګَے) [ق.اِس.مذ](۱) د سترخوان. څپوڼے.(۲) رینګټ. د ژړا اواز.

**ړینګي**:-(ړِي+ن+ګِي)[ق.اِس.ج]د کورسامان.اسباب کډه کوډه.لوښي لرګي.

◈◈◈

# ز

ز:- (زې) [اِس.مؤ.ج. زې ګانې] د پښتو حروف تهجي اتلسم توری دی. د عربي، حروف تهجي يوولسم د فارسي، ديارلسم او د اردو شپاړسم توری دی. دا توری په سنسکرت (او هندي) کښې نه شته. ځکه د هندي، ويونکي "ز" په "ج" بدلوي دا بجد و په حساب د "ز" قيمت اووهٔ (٧) دی. په پښتو کښې دا توری په ج ر ژ اؤ 'ذ ر' بدلېږي.

**زا:-** (زا) [ق.ص] (١) د څاروو د لنګتون وخت. (٢) د کارېز وغېره نه راڅڅېدونکې اوبهٔ. څڅوبې.

**زاب:-** (زا + ب) [فا.ص.مذ] ستائنه. صفت. تعريف

**زابل:-** (زا+ب+ل) [ق.اِس.معرفه.مذ] په افغانستان کښې د عزنې اوقندهار د مينځنۍ علاقې پخوانے نوم، لکه:

بل په زابل نسته، له ما اتل نسته. (امير کروړ)

**زابلستان:-** (زا+ب+ل+س+تا+ن) [اس معرفه. مذ] د کابل او غزني وغېره علاقه چې پخوا به ئې ورته زابلستان وے. دا د مشهور پهلوان رستم وطن وهٔ.

**—— ولايت:-** اص. د زابلستان صوبه.

**زابلي:-** (زا+ب+لي) [اِس.مذ.مؤ. زابلې] د زابل (ملک) سره تعلق لرونکے. د زابلستان اوسېدونکے.

**زاج:-** (را + ج) [اِس.مذ] (١) پتکړے. خاورې. ددې دوه قسمونه دي (راج) حمد سور پتکړے يا خاورې او زواج سفيد. سپين پتکړے يا خاورې. (٢) شخار (٣) سپنخړے.

**زاجر:-** (زا+ج +ر) [ع.اِس.فاع.مذ.ج زاجران ، مؤ: زاجره ج: زاجرې] (١) زجر کوونکے. يعني منع کوونکے. يا بد رد ويونکے. (٢) رټونکے. غصه کوونکے. د پکه دړکه کوونکے.

برائ سروته سپين ، خدائے ته سپين نهٔ وي
د خپل ځان ساتنه که ، د بل زاجر شي — حافظ

**زاجه:-** (زا + جَ) [و.زچه]

**زاخکه:-** (زا + خَ + که) [ق.اِس.مذ] د توهړ يا دوغس ونه

**زاد:-** (زا+د) [فا.اِس.مذ] توښه. خوراک. ازوقه. سفر د پاره د لارې خرڅ خوراک.

د يارانو کډې لاړې ، وار زما دے
د زاد زېرمه ئې ونه کړه زار زما دے — حافظ

**—— آخرت:-** (زاد +ا+خ +ر+ت) د اخرت توښه. مراد ترې نيک عمل اوښهٔ کارونه دي. چې په اخرت کښې به پکاريږي. عربي، فارسي، کښې زاد عقبيٰ هم ورته وائي معني يوه ده.

**—— اخستل:-** (توښه اخېستل. دلارې خرڅ اخېستل. ځوري يا خوږې اخېستل.

مسافر چې ئې سفر وي څو د وړاندې
په مقدار د هغې لارې ، اخلي زاد — خوشحال

**—— راه:-** (زا+د+را+ه) د لارې خرڅ. د سفر د پاره توښه. زاد سفر.

**—— سفر:-** و —— زادراه.

**زاد:-** (زا + د) [فا.مؤ] پېدا زېږېدلے. عموماً مرکباتو کښې راځي. لکه ادم زاد. پري زاد. (په پښتو کښې د ال په ت هم بدلولے شي. يعنې ادم ذات او پري ذات هم وائي.)

**زادبوم:-** (زاد+بو+م) [فا.اِس ص.مذ] د پېدا اوښت ځاے. د زېږېدو ځاے.

**زادګی:-** (زا+د+ګ+ی) [ف.د زاده پښتو تانيث دے چې مؤنث اسمونو سره راځي. لکه شهزادګی. امير زادګی]

**زادګي:-** (زا+د+ګي) [ف تر.]پېدا اوښت. په مرکباتو کښې استعماليږي. لکه شاهزادګي. حرامزادګي.

**زاده:-** (زا+د+ه) [فا.لاحقه مذکر]پېدا شوے. زېږېدلے.عموماً په مرکباتو کښې استعماليږي. لکه شاهزاده . خان زاده. حرام زاده.

**زادي:-** (زا+دي) [فا.ص.مؤ]په مرکباتو کښې په طور د لاحقې استعماليږي. لکه: شاهزادي. نوابزادي وغېره.

**زار:-** (زا+ر) [پ.مذ] جار. قربان.

**—— د چانه کول:-** اص د چانه قربانول.

**زار:-** (زا+ر) [پ. اس.مذ] (١) پريشاني. مصيبت. تکليف (٢) ژړا. فرياد. کوکه (٣) ګله. شکايت.

سخ د هغه چا دې چې په در کښې ئې قبول شي
زار د هغه چا چې ئې له دره و شاړهٔ — رحمٰن بابا
چې ئې تش په کوڅه تېر شم لېونے شم
چې ئې وينم په سترګو زار زما دے — علي خان

**—— دے:-** اص. پريشاني ده. مصيبت دے. هم د زار دے هم د سخ دے که پوهېږې.

**—— کول:-** اص، فرياد کول.

بېهوده له ياره زاد کوم و چاته
د خپل يار له جوره چا موندلے داد دے — خوشحال

**—— کول (له چا):-** ګله. شکايت. ژړا. فرياد.

**زار:-** (زا+ر) [فا. لاحقه] ځاے. مقام چې يو څيز په کښې ډېر زيات وي. مرکباتو کښې استعمالېږي. لکه لاله زار. ګل زار.

**زار:-** (زا+ر) [انګ: ZAR. اس ص.مذ.: زادان] د روس د پخوا زمانې بادشاهانو لقب. زار روس.

**زار:-** (زا+ر) [فا.صف]خرابي. خستګي. بربادي. تباهي.

**—— وزبون:-** (زار+و+زَ+بو+ن) خراب حال. بد حال. په بده ورځ. خوار. خسته.

**زار بوټے:-** (زا+بو+ټے) [پ.اس.مذ.ج. زاربوټي]اغزيز سپيلنے.

**زارخنې:-** (زار+خ+ن+ې) [ق.اِس.مذ] د حوت په دېرشو ورځو کښې اووهٔ د ډېرې زياتې يخنۍ ورځې.

**زار زار:-** (زا+ر+زا+ر) [پ. کلمه]ډېر زيات. په چغو چغو. لکه: په زار زار ژړل.

**ــــــ ژړل**:- اص.په چغو چغو ژړل. ډېر ډېر ژړل. په فریاد سره ژړل.
**زار زمګی**:- (زا + ر + زَ + م + ګَی) [ق.اِس.مذ.]یو قسم ترکاري ده.
**زارزنګی**:- (زا + ر + زَ + ن + ګ + ی) [ق.اِس.مؤ]ترخه منه. مرغوني.
**زارستان**:-(زا+ر + س + تا + ن) [فا.اِس.مذ.]جنګ جګړه. مصیبت. تکلیف
ډېر یاران ؤ د ګل خان و جمال خان
په کار نهٔ شهٔ یو په وخت د زارستان رحمٰن بابا
**زارع**:-(زا+ر+ع)[ع.اِس فاع.مذ.ج. زارعین]زراعت کوونکے. کاشت کوونکے. زمیندار. کسان. دهقان.
**زارمړے**:-(زا+ر+م+ړے) [ق.ص.مذ.ج. زارمړي]کړے. سپېرهٔ. بد شګون.
**ــــــ کېدل**: – اص.سپېرهٔ کېدل بد شګونه کېدل.
**زار موره**:-(زا+ر+مو+ره) [پ.اِس.مؤ.ج. زار موري]فا: زهر مهره. یو قسم کانړے دے چې د زهر ود اثر لرے کولو د پاره ئې اوسولوي او په هغه ځاے لېپ کړي.
**زارول**:- (زا+ ر+و+ل) [پ.مص مت]ځارول. قربانول.
**زارونګ**:- (زا + ر + وَ + ن +ګ) [ق.حمص]و ـــــ زارونه
**زارونه**:- (زا + رَ + و + نَه) [پ.حمص]زارونګ. ځارونه. قربانونه
**زاروونکے**:(زا+ر+وو+ن+کَے)[پ.فا.مذ.ج.زاروونکي.مؤ.زاروونکې] ځاروونکے. قربانوونکے.
**زاره**:-(زا+ر+ه) [اس.مو.ج. زارې]د زهره وران شکل دے. چې تریخی ته وائی. چې صفرا په کښې جمع کېږي.
**ــــــ چاودل**:- اص.(۱) تریخے چاؤدل. بې کچه ډېر سعي او کوښښ کول. (۲) ډېر درد تکلیف رسېدل. (۳) مړ کېدل.
**ــــــ چاودے**:-اص.هغه چې زاره ئې چاودے. مجازاً په کوښښ او زیار سترے.
**ــــــ چوول**:- اص.(۱) چاسره ډېره زیاته خواري کول. (۲) (چاسره) د ډېر زیات کوښښ او محنت نه کار اخېستل. (۳) په محنت او مشقت سترے کول. زاره شنه کول.
**ــــــ شنه کول**:- اص.و ـــــ زاره چول.
**زاره ترکے**:- (زا + رَه + ت + ر + کَے) [ق.ص.مذ.ج. زاره ترکی. مؤ: زاره ترکې] (۱) مړے. (۲) دردمن.
**زاره چاودے**:- (زاره+چا+و+دے) [پ.اِس ص.مذ.ج. زاره چاودي. مؤ: زاره چاودې]غمزده. دردمن
**زاري**:- (زا+ري) [پ.اِس.مؤ](۱) خواست. منت. د خپلې عاجزۍ اظهار. (۲) ژړا فریاد. انګولا.
تهٔ به سر د شفاعت په مېدان کېږدې
د زاري کوکار به اوکړي محمده! خواجه محمد بنګش
**ــــــ کول**:- اص.(۱) خواست منت کول. (۲) ژړا فریاد کول.
د ګور خواري ده د شواري ، کوه زاري مولی ته
بېچره تور بل پکښې اور لرم ماران پراتهٔ دي حافظ
**زاربدل**:- (زا+ري+د+ل) [پ.مص لا]ځاربدل. قربانېدل.
په تول ګلشن کښې خوښېدل اوغوړېدل ګلونه
تول ورتر غاړه یو تر بله زاربدل ګلونه قدوس
**زاربدل**:- (زا+ري+د+ل) [پ.مص لا](۱) کمزورے کېدل. لاغر کېدل. (۲) غمجن کېدل. خفه کېدل.(۳) فریاد کول. شکایت کول.
**زاربدنګ**:- (زا + ري + دَ +ن + ګ) [ق.حمص]و ـــــ زاربدنه
**زاربدنه**:- (زا + ري + د + نَه) [پ.حمص]قربانېدنه. ځاربدنه. زاربدهٔ.
**زاربـــدونکے**:(زا+ري+دو+ن+کَے)[پ.فا.مذ.ج.زاربدونکي.مؤ.زاربـــدونکې] قربانیدونکے. زارکېدونکے.
**زاربده**:- (زا + ري + ده) [پ.حمص]و ـــــ زاربدنه.
**زارینه**:- (زا +ري + نَه) [روس. اس.مؤ]د زار تانیث. د زار روس ملکه.
**زاړند**:- (زا + ړ + ن + د) [ق.ص.مذ.(مؤ.وا: زاړنده.ج: زاړندي]هغه ګډه یا بزه چې د خپلې رمې نه بیل شي او پر دی رمې ته ورشي.
**زاړم بوي**:-(زا+ړ+م+بو+ئ) [ق.ص.مذ]زاړومبے. د زړوکي بوی. د رنجے ورم. زاړ نبوے.
**زاړنبوے**:- (زا+ړ+م+بو+ ) [روسی. ص.مذ]و ـــــ زاړم بوئ.
**زاړوکي**:- (زا + ړو + کی) [پ.اِس.مذ.ج]و ـــــ زړوکے.
**زاړونبے**:- (زا + ړو + م + بَے) [ق.ص.مذ]و ـــــ زاړم بوے.
**زاړه**:-(زا+ړهٔ) [پ.اِس.ج.وا: زوړ](۱) د ډېر وخت څيزونه. عمر خوړلي او بیکاره څیزونه. (۲) د زیات عمر بنیادم. بوډا ګان.
**ــــــ واړهٔ**:- اص.واړه زاړه. بال بچ
**ــــــ واړه**:- اص.(و ـــــ زاړه واړهٔ)
**زاړه والا**:- (زا+ړه+وا+لا) [پ.اِس ص.مذ]هغه څوک چې زاړه څیزونه خرڅوي. کباړي. لډر (ق).
**زاړئ لوغے**:- (زا + ړَ + ئ + لو + غے) [ق.اِس.مذ](و.زړه لوغے)
**زاړے**:-(زا+ړے) [پ.ص.مذ](۱) مهینه کړلے شوے فصل. (۲) هغه غوا چې مخ کښې ئې لنګون شوے وي.
**زازو**:- (زا + زو) [پ.مذ]خامخا. اَرومرو. ضرور. زاوزو
**زازي**:- (زا + زِ + ي) [پ.اِس.مذ]ځائی. د یوې قبیلې نوم.
**زاږه**:- (زا + ګه) [پ.تابع](۱) د اتکے عموماً د واړهٔ سره یو ځاے راځی لکه: واړه زاږه یعني ماشومان.(۲) زیږ. چې مهین نهٔ وي. لکه: دا واړه زاږه دي.
**زاغ**:- (زا + غ) [فا.اِس.مذج. زاغان](۱) کارغهٔ. کاغه. (۲) هوښیار. چالاک.
چې زاغان او تپوسان پرې اُسوده دي
داسې ګل پسې بلبل کوي پشارې احمد دین طالب
**ــــــ زبان**:- اص.د کارغهٔ په شان توره ژبه لرونکے. تور ژبے-رواني چې د تور ژبی سړي بددعا زر قبلېږي.
**ــــــ سه پر**:- (زاغ + س+ ه+ پ+ ر ) [ف.تر.مذ.سه پر الفظي درې وزرو والا کارغهٔ. مراد ترې غشے دے.
**ــــــ کمان**:- (زاغ+ک+ما+ن) [فاتر. مذ]الفظي د لیندې کارغه. مراد د لیندې د ګوټ ځوکه یا خرپ چې ژئ په کښې تړلے کېږي.
**زاغچکه**:-(زا+غ+چ+کَه)[ف.اس.مؤ]د کارغهٔ یو قسم چې د عام کارغهٔ نه وړوکے وي. زاغچه. کواغی.
**زاغچه**:- (زاغ + چه) [پ(ظرف).اِس.مؤ.]و ـــــ زاغچکه.
**زاغر**:-(زا+غ+ر) [فا.اِس.مذ]د چرګ یا د مرغو ججورے.
**زاغزوغ**:(زا+غ+زو+غ)[ق.اِس.ص.مذج.زاغزوغان.مؤ.وا.:زاغزوغه.ج.زاغزوغې.ز اغزوغانې]چغل خور. غماز.
**زاغزوغي**:-(زا+غ + زو+ غي) [ق.اِس.مؤ]چغل خوري. غمازي. چغلي.
**ــــــ کول**:- اص.چغلي خوړل. غمازي کول.
**زاغه**:- (زا + غَه) [پ(ظرف).اس.مؤ.ج. زاغې]سمس.څمڅ.کمر غالے.
**زاګ**:- (زا + ګ) [فا.اِس.مذ]پتکړے. خاورې. زاک. خاوری.
**ــــــ سپین**:- اص.(فپ.تر.مذ)سپین پتکړے. سپینه خاورې.
**زاګی**:-(زا+ګ+ئ) [ق.اِس.مؤ] ځناورو باندې اچولو د پاره لمڅینه شړې.
**زال**:- (زا+ل) [ف.اِس.مذ و مؤ](۱) بوډا. ضعیف. د زوړ عمر سړے یا ښځه.(۲) د رستم پهلوان د پلار نوم ځکه چې د سر وېښتهٔ ئې پېدائشی سپین وو.(۳) دنیا هم ډېره زړه ده ځکه کنایتاً دنیا ته هم زال یا زال دنیا وائي.

اوس دا نوي ښائسته که هر څو يار کړم
د ځــوانــانــو ځــه پــروا پــه پــيــرۍ زال خوشحال

ـــــ **پير**:- اص.ډېر زيات بوډا. عموماً پير زال وئيلے شي.

ـــــ **كوفه**:-اص. (ف.اس.مؤ)د كوفې د ښهر هغه بوډۍ چې (وائي چې) د هغې د تنور نه د طوفان نوح د اوبو ختل شروع شوے وۀ.

ـــــ **مدائن**:- اص .(ف. اس.مؤ)د مدائن ښهر هغه بوډۍ چې په نوشيروان باچا ئــې د خپلــې جــونګړې د خرڅولــو نــه انكـار كــړے وۀ اولــه دې كبلــه د نوشيروان په محل كښې كږلېچ راغے.

**زالبند**:-(زال+ب+ن+ د) [ق.اس.مـذ.ج. زالبندونـه]اد اوبښ بسكېل كولـو رسـۍ وغېره.

**زاله**:- (زا + لَه) [پ.اس.مؤ.ج. زالې]ځاله. جاله. د مرغۍ منجاله.

**زام**:- (زا+م) [ق.كلمه.مـذ](۱) د "زعــم" وران شــكل. ګمــان. قيــاس. (۲) د "زۀ وايم" مخفف.

**زامبيا**:- (زا+م +ب+يا) [اس.مع]د يو ملک نوم. زمبيا.

**زامده**:-(زا+م+ ده) [ق.اس.مؤ.ج. زامدې]يو قسم بوټے چې ګل ئې لري او اكثر پـه جبه كښې پيدا كېږي. د زخم د پاره فائده مند دے.

**زامن**:- (زا+ م + ن) [پ.اس.ج]د زوي جمع.

**زامه**:- (زا+ مَه) [پ.اس.مؤ.ج. زامې]ژامه. جامه.

څو وهي د فكر زامې باندې شخوند
زيــاتــوي زمــا خــبرې هــومره خوند عبدالحميد

ـــــ **په دواړوموشخوندوهل**:-اص.ډېر زيات حرص او لالچ كول.اروا وړے كېدل.

ـــــ **تر زامې كول (پوشے)**:-اص.تر جامې يا ژامې كول. جامې/ژامې تـه اچول. خلې ته اچول. خوړل.

ـــــ **تر زامې لاندې كول**:- اص.(۱) په څۀ څيـز زبردستي قبضـه كول. (۲) خبـره صفا نه كول.د جامې (ژامې) د لاندې كول. په خله كښې نيول. خبره كول خو تصريح نه كول. ګل مول خبره كول.

ـــــ **زامې ترله تېرول**:- اص.[پ.ق]جامې يو تربله كول. كنايه ده د شوم كېدونـه. ډېر شوم كېدل.

ـــــ **زامې تېرول**:- اص.د چا مال غصب كولو د پار تياري كـول. جامې يا ژامې تېره كول.

ـــــ **د چا زامې ماتول**:- اص.څوک ژوبل كول. ژامې ورته ماتول.

ـــــ **لاندنۍ**:- اص.لاندينۍ جامه. ښكتنۍ جامه.

ـــــ **لوړه**:- اص.پورتنۍ جامه. برنۍ جامه

**زامے**:- (زَا /زَ+ مے) [اس.مـذ.ج. زامی](۱) د اوبـو مشـک ګـوټے. (۲) د غـوړو جمع كولو د څرمنې ګوډے.

**زان**:- (زَا + ن) [پ.اس.مذ]ځان. جان. وجود.

**زاندره**:-(زا+ن+د+ رَه) [پ (خل).اس.مؤ.ج.زاندرې]ځاندره. كانتيى. قد۔بت.

**زانډورے**:- زان + ډو+ رے) [ق.اس.مـذ.ج. زانډورې]جامـه. زامـه. برغښـے "الا شه.

**زانـه**:- (زا+ن+رَه) [پ.اس.مـؤ.ج. زانې]يـو مشـهور مارغـۀ چـې اوږده غـاړه او اوږدې نرۍ پښې ئې وي. د اوبـو پـه غـاړه اوسـي. د ژمـي پـه شروع كېـدو قطارونه قطارونـه د برې پښـتونخوانه كښـته راكوزېږي او بيـا چـې ژمـے تير شي نو واپس پور ته خېژي.

كه ئې سل ځله د زانې په خپل ګډ كــړي
ســرده مــژک تــه بــه نــظر كــا غــليو از سعيد

ـــــ **د زانې په قطار كښې ګرځېدل**:- اص.د زياتې مرتبې خلقو سره ځان برابـرول. خپل حيثيت نه زيات خوبونه لېدل.

ـــــ **د زانې نه كټورې غوښتل**:-اص.د نه كېدونكې كـارخواهش كول. خيـالي پـلاو پخول.احمقانه خواهش كول.

**زانغولے**:- (زا+ن+غو+ لے) [پ.ق.اس.مذ.ج زانغولي]اوروكے كلنګ.

**زانګل**:- (زا+ن+ ګ+ل) [پ.مص لا]زنګېدل.ټالونه خوړل.

**زانګلے**:-(زا+ن+ګ+لَے) [پ.مف.مذ.ج. زانګلي. مؤ. زانګلې]زنګېدلے.

**زانګنه**:- (زا+ن+ګ +نَه) [پ.حمص]زنګېدنه. ټالونه خوړنه.

**زانګو**:-(زا+ن+ګو)[پ.اس.مو.ج. زانګوګانې]زانګوچ. پينګو. ځانګو زنګوچ. (ځنې خلق ئې جمع زانګوئې هم وائي.)

ـــــ **داوړېنې**:-اص.يعنې د هغـه عمر چې پـه زانګو كښې اچولے او پـه او ورېنې كښې تړلے شي. د ماشوموالي عمر. هغه وخت چې د زانګو داوړېنې.

**زانګوچ**:- (زا + ن + ګو + چ) [پ(مر).اس.مذ] زانګو.

**زانو**:- (زا + نو) [فا.اس.مذ] زنګون. ګوډه.

ـــــ **بند**:- (زانو+ب+ن+د) [ف تر.اس.مذ]هغه ربړې پټـه چې د جرابـو د ټينګولـو دپاره زنګون نه ښكته تړلے شي. ګارټر.

ـــــ **پوش**:- (زانو+پو+ش) [ف تر.مـذ.ج. زانو پوشونه]هغه كپـړه چـې د خـوراک پـه وخت د زنګنون دپاسه كېښودے شي.

ـــــ **په زانو**:- اص.(ف تر. صف)زنګون په زنګون. يو بل سره جخت.

ـــــ **وهل**:- اص.په زانو كښېنا ستل.

ـــــ **كيښېنستل/كښېنا ستل**:- (۱) پـه زنګـون كښـينا سـتل (لكـه ماشـوم (۲) پـه كښيناسـتو كښــې زنګـون لګـول (لكـه چــې د ټوپـک چلولــو دپـاره كښېناستلے شي) زنګون ماتول.

**زانه**:-(ز+نه) [پ (ظفر) اس.مذ] كرېږے. (جهينګر)

**زاني**:-(زا+ن+ ي) [ع صف.مؤ. زانيـه]زنا كـوونكے. رنډي بـاز. زنا كـار. بـد كـار (زانيه). زنا كاره ښځه. فاحشه. بدكاره.

**زاو**:- (زا+ ؤ) [ب. سـابقه](۱) مـروج. قـوي. مضـبوط. (۲) دَ روز (۳) غـر. (۴) ماتـه خښته. (۵) ابشار.

**زاو**:- (زا+ ؤ) [ب.سابقه]نورو الفاظو نه مخكښې لګي لكه. زاوزاد.

**زاوال**:- (زا+وا+ل) [پ.مذ]ع: زوال. د كمال.ضد. تبـاه بربـاد. دا لفظ د بـد دعـا د پاره عموماً د 'كبر' سره يو ځاے راځي. لكه: كبر دې زاوال شه.

**زاوزات**:- (زا + ؤ + زا + ت) [ت.اس.مذ]زاوزاد. اولاد.

**زاوزاد**:- (زا + ؤ + زا + د) [پ.اس.مذ]و ـــــ زاوزات.

خداے لــه هسې زاوزاده امان راكړه
چې بـې دين ، بې ديانته شي بې نماز رحمٰن بابا

**زاوزو**:- (زا+ و+ زو) [ق.اس.مذ]و ـــــ زازو.

**زاور**:-(زا+و+ر) [فا.اس.مذ](۱) نوكر. چوكر. چوپړے(۲) د زهرې سـتورے. ګـپ. (۳) زور. برم. سبک. (۴) د سورلۍ اوبـار برداري ځاروے. (۵) چپر غټ. كوكر. (۶) توري اوبه. د سترګو بيماري. (۷) شوم . بخيل. ګروټے.

**زاوش**:- (زا + وَ + ش) [فا. اس.مذ]د مشترى ستورے. ځلنده ستورے.

**زاولانه**:- (زا + ؤ + لا+ نَه) [پ.اس.مؤ.ج. زاولانې]زولنې. ببرۍ. پيكړې.

**زاولن**:- (زا+ ؤ+ ل + ن) [پ.ص.مذ]هغه رخم چې زوه تري نه راځي.

**زاولن**:-(زا+و+لَ+ ن) [ق.ص.مذ. (مؤ.وا. زاولنه.ج. زاولنې] بې كاره. سست.

**زاوله**:-(زا + و + لَه) [پ(مر).اس.مؤ]ژاوله. جاوله. چيونګم. ژوغله. ساجق.

**زاولېجن**:(ز+ا+و+لې+جن)[پ.ص.مذ. (مؤ.ا. زاولېجنه.ج.زاولېجنې] ژوغليجن.. هغه څيز چې په بل څيز پورې ښخېږي.

**زاوه**:- (زا+ وۀ) [پ.اس.مذ] ابشار. جروبے. زاوے.

كوټه سګ د زمانې هر ګوره ډې شول
لــكــه پــرانګ د زاوۀ ويــنه كــرخــه خوشحال

**زاوے**:- (زا+وَے) [ق.اس.مذ] (۱) يو قسم کانړے دے چې ميده ئې کړے او خاورو سره ئې ګډ کړے بيا ترې لوښے جوړوي. (۲) و ـــــ زاوۀ

**زاويل**:-(زا+وي+ل)[ق.اس.مذ]زول. سخته سيلۍ او باران. جګړ. طوفان.

**زاويه**:-(زا+ويه) [ع.مو.ج.زاويې] (۱) هغه ګوټ چې په دوه ؤ نيغو .مستقيمو) خطونو په يوه نقطه ځاے کېدو سره پيدا کېږي. (۲) ګوټ. ګوشه. (۳) د خلوت ځاے. د يو اځتيار کوټګۍ چې عبادت په کښې کولے شي.

**ـــــ د نظر**:- اص.هغه زاويه چې د بني ادم د نظر (چې په کوم خاص څيز لګېدلے وي) او هغه عمود په مينځ کښې جوړېږي. کوم چې د دغې بني ادم د سترګې نه زمکې طرف ته راښکے شي.مجازاً ددې نه مراد د دې بنيادم خيال راے يا نظريه يا د فکر انداز وغېره اخستے شي.

**ـــــ قائمه**:- اص.چې يو نيغ (مستقيم) خط دپاسه بل نيغ خط داسې راښکلے شي چې ددې خط دواړه طرف ته جختې (متصلې) زاويې يو بل سره برابر وي. په دې کښې هره يوه زاويه قائمه نوميږي. (ددې ۹۰ درجې وي).

**ـــــ ګر**:- اص.زاويه جوړوونکے. دزاويې د جوړولو اله.

**ـــــ منفرجه**:-اص.کشاده ګوټ. هغه زاويې ته وائي کومه چې د قائمې زاويې نه لويه وي. (اوګوره زاويه قائمه)

**ـــــ حاده**:- اص.هغه زاويه چې د قايمې زاويې نه وړه وي (وړاندې او ګوره قائمه زاويه).

**ـــــ دانعکاس**:- اص.هغه زاويه چې دړنا ځريکه په څۀ څيز د لګېدو نه پس منعکسه شي او د دې اولنے خط او منعکس شوے خط تر مينځه جوړه شي.

**زاهد**:- (زَا+ه+د) [ع.مذ.ج.زاهدان (زهاد).مؤ: زاهده. ج: زاهدانې] هغه بني ادم چې د دنيا (دخلقو)نه بيل او ځانته (اوسي اوخپل ژوند په عبادت او د خاے په ياد کښې تېروي. عابد او پرهيز ګاره سړے.

زاهدان که افتخار کا په خپل زهد

د عاشقو وظيفه وي د صنم نام علي خان

**زاهدخشک**:- (زاهد - + خ + ش + ک) هغه زاهد چې د خپل عبادت د پاره پوره پوره اهتمام کوي خو دنياوي معاملاتو سره هيڅ دلچسپي نه لري. کټپاس زاهد. ۲. نمائشي زاهد.

**زاهدانه**:-(زا+ه+دا+نَه) [ق.صف]د زاهدانو په شان.د پرهيزګارو خلقو په شان. دپرهيزګارو خلقو په شان. د زاهدانو په انداز يا طريقه.

**زاهدي**:- (زا+ه+دي) [پ.اس.مؤ]پرهيزګاري. تقوىٰ.

لږ تفاوت نۀ دے درندئ د زاهدۍ

چرته زلمي جُونه ، چرته کُنډې يتيمان رحمٰن بابا

**ـــــ دريا**:- اص.هغه تقوىٰ يا پرهيزګاري چې د خلقو د ښکاره کولو دپاره کولے شي

د ريا لــه زاهـدۍ زمـا تـوبـه ده

چې ئې کاندي څوک په رسم او په عادت رحمٰن بابا

**زاهر**:- (زا + ه + ر) [ع.صف] زلګېدونکے.

**زاهق**:-(زا+ه+ق)[ع.اسفاع.مذ]تښتېدونکے.زغلېدونکے.تباه کېدونکے. هلاک کېدونکے.

سمندر سمک نۀ پائي پــه هجران کښې

چې ښيلتون ور باندې راشي دوي زاهق دي حافظ

**زاے**:- (زا+ه) [پ(ظفر).اس.مذ.ج: زايونه]زے. داوبو مشک.

**زاے**:- (زا+ے) [پ.لفظ. مذ.مؤ: زۍ]دا لفظ د يو قبيلے يا خپل د مشرد نوم سره د لاځقې په ډول راځي او دهغې قبيلې يو سړے ترې مراد وي. لکه: يوسف زے. محمد زاے. کمال زاے. احمد زاے وغېره.

**زاپيه**:- (زا + ي + پَ + ه) [ق.اس.مؤ]نکاح شوې ښځه. کوروالا.

**زائچه**:- (زا + ئے + چهَ) [ه.اس.مو.ج.زائچې]په رسمل (يا نجوم کښې د قرعې د چولو نه پس څۀ خاص قسم کرښې جوړولے شي او حساب لګولے شي. هغې ته زائچه.(جوړول يا کښل) وائي. په دې باندې هندوان بامبران د ماشوم قسمت يا د څۀ کار دپاره موزون وخت معلوموي.

**زائد**:- (زا + ئ + د) [ع.مذ]زيت. پاتے. فالتو. فضول.

**زائر**:- (زا+ئے+ر) [ع.اس فاع.مذ.ج: زائران]زيارت کوونکے. زيارت ته تلونکے.

بلا رګ زيـارت ئې د شعبب پېغمبر وکړ

بـرکـت دې پـــه مـزور هــم په زائرېش حافظ

**زائشګاه**:-(زا+ئ+ش+ګا+ه) [فا.اِس ص.مؤ]لنګتون. د لنګون ځاے. ميټرنټي هوم.

**زائـل**:- (زا+ ئ+ ل [ع.اس فـاع. مـذ] لـرے. محو.متهاؤ. کمېدونکے. ضـائع . ورک.

د سيعد په زړۀ د يار څهره رقم شوه

نور ئې واړه کوز و پاس له زړۀ زائلے

**ـــــ کول**:- اص.(۱) لرے کول. متهاؤ کول. ختمول. کمول. ضائع کول. ورکوول. (۲) کمے راوستل . زائلوول.

**ـــــ کېدل**:-اص.[فپ.اص](۱) کمے راتلل. زائېلېدل. (۲) ضائع کېدل ورکېدل.

**زائله ول**:- (زا + ئ+ لَه + و + ل) [پ.مص مت]و ـــــ زائل کول.

**زائلېدل**:- (زا + ئ + لي + د + ل) [پ.مص لا]و ـــــ زائل کېدل.

**زاينزم**:- (زا + يَ+ ن + ز + م) [اس.مذ]د يو تحريک نوم دے چې په فلسطين کښې پخوانے يهوديت بيا راژوندے کړے شي.

**زبات**:- (ز + با + ت) [پ.مذ](۱) ثابت. (۲) احسان. نيکي.

**زباتل**:- (ز + با + ت + ل) [پ.مص مت]په چامنت کول. په چا احسان کول.

**زباتلے**:-(ز+با+ت+لَے)[پ.مف.مذ.ج.زباتلي. مؤ: زباتلې]احسان مند. ممنون.

**زباتنه**:- (ز + با + ت + نَه) [پ.حمص]احسان مند کونه. ممنون کونه.

**زباتول**:-(ز+با+ت+و+ل) [پ.مص مت]زبادول چاته خپله نېکي وريادول. چاته خپل احسان وريادول.

**زباګونکے**:-(ز+با+ تو+ ن+ کے) [پ.فاع.مذ.ج: زباتونکي مؤ: زباتونکې] احسان کوونکے. نېکي کوونکے.

**زباد**:- (ز+با+د) [پ. مذ](۱) ثبات . پائيدارپوره. موړ. ياد به دې زۀ کرم، زباد به دِ خداے کړي.

تل نامه د بد نامۍ وي پرې زباده

نۀ ويـريـږي لږ پېغوره له اهراره رحمٰن بابا

**ـــــ کول**:- اص.ثابتول.

د ښيلتانۀ په تبغ مې وژني نۀ پوهېږم ولې

دا محبوبا دې يو ګناه راباندې زباد کاندې (خواجه محمد

**ـــــ کېدل**:- اِص.ثابتېدل. ثابت کېدل. په ثبوت کښې وړاندې کېدل. ښکاره کېدل.

اوس زمـا د نـام و ننګ سره څۀ دي

چې نې نوم د عاشقۍ زبادنې زباد شۀ علي خان

**زبادول**:- (ز + با + دَ + ؤ + ل) [پ.مص مت](۱) زباتول. ثابتول. (۲) چاته خپله نېکي وريادول. چا باندې کړے احسان وريادول. (۳) مړۀ ول.

چې چاته ورکړې بيا ئې پرې زباد کړې

خپل ورکـړه ګـوره واړه بـربـاد کړې خوشحال

**زبادون**:- (ز + با + دو + ن) [ق.مذ]ثبوت.

**زبادونګ**:- (ز + با + د + وَ+ ن + ګ) [ق.حمص]و ـــــ زبادونه.

**زبادونه**:- (ز+با+د+و+نَـه) [پ.حمص]زبادونـګ. ثابتونـه. احسـان يـا نېکـي وربادونه.

**زبادوونکې**:(ز+با+د+وو+ن+کَې)[پ.فا.عمذ.ج:زبادوونکي.مؤ:زبادوونکې] (۱) ثابتوونکې.(۲) احسان يا نېکي يادوونکې.

**زبادېدل**:- (ز + با + د ي + د + ل) [پ.مص لا]ثابتېدل.

**زبادېدنګ**:- (ز + با + دي + دَ + ن + ګ) [ق.حمص]و ـــــ زبادېدنه

**زبادېدنه**:- (ز + با + دي + و + نَه) [پ.حمص]زبادېدنګ. ثابتېدنه.

**زبادېـــــدونکی**:(ز+با+دي+دو+ن+کَی)[پ.مف.مــــذ.ج:زبادېـــدونکي. مـــؤ: زبادېدونکې] ثابتېدونکی.

**زبـان**:- (زَ + بـا + ن) [فـا.اس.مؤ](۱) ژبـه. ځبـه. زبـه(۲) قـول. لـوظ. وعـده. اقـرار (۳) خبرې اترې. بيان. وينا.

درفشان بويه په ګفت لکه سعيد څوک
نـهٔ د هــر يـــوه زبـــان بنائي سخن تــه سعيد

ـــــ **بسته**:- اِص.ژبه پربکړې. ژبه تړلې. غلې. خاموشه. چپ

ـــــ **بنـد**:- اِص.داسې تعويـذ چې ددشـمن ژبـه بنـده کـړي. د ژبـې د بنـد ولـو تعويذ، جادو يا ټوټه ټوټکه.

ـــــ **بند کړه**:– اِص.ژبه بند کړه. غلې شه. بکواس مه کوه.

ـــــ **بندول**:- اِص.ژبه بندول. د جادو وغېره پـه زور د ځان بر خلاف د بـل ژبـه بندول. بل غلې کول. د بل خولهٔ بندول. بل خبرې ته نهٔ پرېښول.

**زبان بندي**:- (ز+با+ن + بَ + ن + دي) [فا.اس.مؤ](۱) د ژبې بندېز. د تقرير کولو ممانعت. (۲) هغه تعويذ يا دَم چې د بل سرې ژبه بنده کړي.

ـــــ **کول**:- اِص.د تقرير کولو نه منع کول. ژبه بندول. د څهٔ وئيلو اجازت نهٔ ورکول.

ـــــ **کېدل**:- اص.د تقرير کولو يـا د څهٔ وئيلو اجازت نـهٔ ورکولے کېـدل. ژبـه بندېدل.

ـــــ**بندېدل**:-اص.ژبه بندېدل. د خبر و قوت نهٔ لرل. د جادو يـا د تعويـذ پـه زور د چا برخلاف د خبرو توان نه لرل.

ـــــ**تالو سره لګول**:- اص.ژبه تالو پورې يا تـالو سره لګول يا جختـول. ژبـه بندول. غلې کېدلَ. چپ کېدل. خبرې نه کول.

ـــــ **تراشل**:- اص.ژبه توږل. ژبه صـفا کول. ژبه ښهٔ کول. سنجول.ژبه فصيحه کول. د ژبې نه ناکاره الفاظ ايستل او پاکيزه کول.

ـــــ**چاودل**:- اص.ژبه چاودل. خبره کول. وئيل. ژبه خوځول.

ـــــ **چلول**:- اص .ژبه چلوول. په چالاکۍ، بې باکۍ او ځاضر جوابۍ سره خبرې کول. ژبه ښهٔ چاخه چاخه خوځول. زر زر خبرې کول.

ـــــ **چلېدل**:- اص.ژبه ښه چاخه چاخه خوځېدل. پـه بې بـاکۍ سره خبرې کول. د ژبې زر زر حرکت کول.

ـــــ **حـال**:- اص.د حـال پـه ژبـه. دبـې سـاه څيـز پـه حقلـه وئيلې شي چې د هغـه ظاهري حال نه معلومېږي.

ـــــ **خلق**:- اص.د خلقو ژبه. يعني کومه خبره چې په خلقو کښې خوره يـا مشـهوره شي.

ـــــ **دان**:- اِص.په ژبـه پوهېـدونکې. د ژبـې مـاهر. ژبپوهانـد. هغـه څوک چې د چا ژبه زده وي. د ژبې پوهان. چې يوه ژبه په صحيح طور سره وئيلې شي.

ـــــ **داني**:- اص.د ژبـې زده کونـه پـه يـوه ژبـه کښـې پـوره واقفيـت او د کمـال حاصلولو کار. په ژبه پوهېدنه. د ژبې په صحيح وينا پوهېدنه.

ـــــ**دراز**:- اص.(۱) اوږد ژبې. بدرد ويونکې چې خولهٔ ئې په واک کښې نهٔ وي. خله ور. خبرلوځه. بد ژبې. پوچ خلې کاواک. (۲) ګستاخ چې د مشرانو پـه مخ کښې هم ډېرې خبرې کوي. (۳) بد ګوے. کنځل مار.

يوه ګوئې دراز زبان مه شه که ګورې
بېهوده خـبرې مـه کړه پوچې ، بوږې خوشحال

ـــــ**دراز کول**:- خبرې شروع کول.

صورت ګر چې ښهٔ صورت په دېوال ساز کا
کـل عـالـم ئـې پـــه صفت زبـان دراز کـا خوشحال

ـــــ**درازي**:-اص.په ويناکښې دچا لحاظ او ادب نه کول. بد زبـاني. ګسـتاخي. (۲) د ژبې اوږدېدنـه ډېرې خبرې کونـه. (۳) بد ګـوی. بـد کلامـي. کنځـل ماري.

ـــــ**درازي کول**:- اص.ګستاخي کول. بدرد وئيل. په وينا کښې ادب لحاظ نه کول.

ـــــ**درازي کېدل**:- اص.ګسـتاخي کېـدل. بـد زبـاني کېـدل پـه خبـرو کښـې د چـا ادب لحاظ نه کېدل.

ـــــ **زد**:- اص.مشهور. د هر يو په ژبه. د خلقو په خولهٔ. په خلقو کښې خور.

ـــــ **شناس**:- اص.د ژبو د علم پوهان. د لسانيا تو ماهر.

ـــــ **شناسي**:-د ژبو علم. علم الالسنه. لسانيات.

ـــــ **ګوهر بار**:- اِص.مرغلرې دوړوونکې يـا وروونکې ژبـه. فصـيځه ژبـه. خـوږه ژبه.

ـــــ**ګيري**:-اص.د ژبې نيول.خبره نيول. د جاسوسۍ کار. اعتراض.

ـــــ **نيول**:–اص. (۱) ژبه نيول .بل خبرې تـه نـه پرېښـودل. د بـل خبـره پرېکـول. د بل د خبرې په مينځ کښې خپله خبره کول. د بل په خبره اعتراض کول.(۲) غلې کېدل. چپ کېدل. خولهٔ بندول.

ـــــ**ورتلل**:- اِص.ژبه ورتلل. د ژبې نه واقف کېدل. په يوه ژبه کښې د خبرو چـل ورتلل.

ـــــ **ورکول**:- اِص.قول ورکول. لوظ کول. وعده کول. اقرار کول.

**پهـــــ ازغي ودرېدل**:- اص.په ژبه ازغي ودرېدل. ژبه وچېدل. د خشـکۍ پـه وجـه ژبې د پاسه ازغي کېدل.

ـــــ**په زبان حال ويل**:- اص.د حال په ژبه وئيـل يـا خبـرې کـول. د ظاهري حـال نـه خبرې څرګندېدل. بې وينا موجوده حال په ذريعه اظهار کول.

**پهـــــ خټل**:- اص.(۱) په ژبـه خټـل. زبـاني يادېـدل. پـه يادوکېـدل. د وينـا مشـق کېدل. (۲) تکيه کلام کېدل.

**پـهـــــ راوړل**:- اص.پـه ژبـه يـا پـه خولـهٔ راوړل. وئيـل. خبـره کـول. خولـو خوځول. بيان کول.

**پهـــــ کېښول**:- اص.په ژبه يا په خوله کښېښول. څکل. خوند معلومولو د پـاره لږ غوند خوړل.

**زبانه**:- (ز + با+ نَه) [ف.مو]لنبه. شعله (چې د ژبې په شان وي)

**زباني**:-(زَ+با+ني) [پ.ص]د ژبې د خبرې . په خولهٔ. تش په خولهٔ. د يادو.

خوږه وه جـلـيس انيس پــــه خــوږه ژبه
ددې وخت يـاري ناني يـا زباني ده حافظ

ـــــ**اورول**:- اِص.په يادو اورول. بې د ليک يا کتاب ته د کتو نه اورول.

ـــــ **امتحان**:- اِص.داسې امتحان چې په ليـک کښـې نـه وي او ممـتحن هسې په خولهٔ تپوسو نه اوکړي او اميدوار ورله جوابونه ورکړي. (د تحريري) يا د پرچو د امتحان په مقابله کښې)

ـــــ **پيغام**:- اص.په خولهٔ سوال جواب چې په ليک کښې نهٔ وي استولے شوے. زباني خبرې.

ـــــ **تکې**:- اِص.د خلې ډوزې. هسې تش ګپ.

ـــــ**جمع خـرچ**:-اص.(۱) د خلې جمع او خرڅ. د خلې خبرې پـه خولهٔ وئيـل او کول هيڅ نه. تشې خبرې يا ډوزې. خيالي پلاوونه پخوول. عملاً هيڅ نهٔ کول. (۲) زباني حساب کتاب چې اصليت ئې هيڅ نهٔ وي.

**ـــــ خبري:** – اص.(۱) د خلې خبري. داسې خبري چې تش په خوله وئيلے شي او عمل پرې نه شي کولے. (۲) هغه خبري سوال جواب چې په خوله اووئيلے شي (په ليک کښې نه وي). (۳) هغه وعدې يا مصوبې وغېره چې عمل ورسره نهٔ وي.

**ـــــ گپ شپ:** -تشې د خلې خبرې چې عمل پرې نه کېږي.

**ـــــ لوستل:** - اص.په يادو لوستل. کتاب يا ليک تـه نهٔ کتـل اولوستل. حفظ لوستل.

**ـــــ ليکل:** - اص.د چانه اورېدل او بيا ليکل. اورېدلې خبره ليکل.

**ـــــ وعده/ قول/ لوظ:** - هغه وعده يا لوظ قول چې په ژبه اوکړے شي (د ليکلې شوې وعدې وغېره په مقابله کښې)

**ـــــ وئيل:** - په خولهٔ وئيل. څه سوال جواب چاته په خولـه رسوول (د ليک يا د خط په مقابله کښې)

**زبده:** - (زُ + ب+دَه) [ع.مذ.]د څهٔ څيز د ټولو نه غوره برخه، منتخب. برگزيده. ختے (حصه) عموماً د عربۍ په مرکباتو کښې استعمالېږي. لکه زبدهٔ الحکما، زبدهٔ السالکين. زبدهٔ کائنات. په کل کائنات کښې غوره يعني حضور پاک صلی الله عليه وسلم.

**زبدهٔ الحکما:** - (ز + ب + دَ + هٔ + ال + ح + کَ + ما) [ع.اس ص.مذ.]دحکماؤ زبده. په حکيمانو کښې غوره، دايو خطاب دے چې حکيمانو او طبيبانو ته ورکولے شي.

**زبـر:** -(زَ+ب+ر) [فا.ص.مـذ.مؤ: زبـره.ج: زبـرې](۱) طـاقتور. توانـا. زورور.(۲) غالب. سربېره.(۳) اوچت. باندې. پاس. لوړ. (۴) بر. بـرے مونـدونکے. برسبره. (۵) چيچونکے سپے. (۶) زور. فتحه.

تا وې درومه نوم مې زبر کړه بل سبق له زرهٔ بدر کړه
تل مې تـهٔ ئې پـه خاطر کښې زبـر خـو هسې وي کـنه    خوشحال

**ـــــ دست:** -اص.(۱) هغه چې لاس ئې بره وي. زيات قوت يا طاقت والا. زوزور. (۲) د صفت په طور ډېر اعلی زورور زبردست برے ئې بيا موندو.

**زبر:** - (زُ+ب+ر) [پ.فا: اَزبر. مذ.]ياد (زباني). په يادو. حفظ.

**ـــــ کول:** - اص.يادول. حفظ کول. په يادو کول.

**زبرجد:** –(ز+ب+ر+ج+د) [فا.اس.مذ.]يو قسم قيمتي کاڼے چې زېړبخن- شين رنگ ئې وي. زمرد. سينگټے.

**زبردستي:** - (ز+ب+ر+د+س+تي) [فا.اس.مؤ](۱) پـه جبـر. طاقـت سره. پـه زور (۲) زور ور توب. زورورتيا. زورزياتي. جبر. ظلم. زياتے.د طاقت مظاهره.

**ـــــ کول:** - اص.زياتے کول. زور زياتے کول. جبر کول. ظلم کول.

**ـــــ کېدل:** - اص.زور زياتے کېدل. لم کېدل. جبر کېدل.

**زبـرگ:** -(ز+ب+ر+گ)[پ.اس.مذ. ج:زبرگان.(مؤ.وا. زبرگـه ج:زبرگې. زبرگـانې] (۱) بزرگ. مشر . (۲) ولي. نيک سړے. پرهيزگار.

**زبرگه مياشت:** -(ز+ب+ر+گه+م +يا+ش+ت) [پ.اس معرفه. مؤ]د اسلامي کال اوومه مياشت. رجب. د خداے مياشت هم ورتـه وائي. اکثر خلق پـه دې کښې زکوٰه ورکوي. ولايت.

**زبره:** – (ز+ب+ره) [ق.اس.مؤ.ج: زبرې]يو ريگستاني نرم بوټے دے. د خشاک دپاره ډېر ښهٔ دے.

**زَبس:** - (ز + بَ + س) [فاتر.]ډېر کافي.

**زبغرانـــد:** (ز+ب+غ+را+ن+د)[پ.اس.ص.مذ.مؤ.وا.زبغرانده.ج.زبغرانـــدې] ژبغراند. هغـه ماشوم څوک چې اول اول ژبـه غـړوي اوپـه خبرو کښـې لـږ ننبلي.

**زبگه:** - (ز+ب+ گهٔ) [ق.اس.مؤ. ج. زبگې]. يو قسم غرئيزه رشکه.

**زبل:** - (ز+ب +ل) [پ. مص مت]تکليف رسول. ازارول. زپل.

**زبله:** - (ز+ ب + لَه) [ق.اس.مؤ]ځبله. يو بل سره.

**زبلے:** -(زَ+ب+لَے)[پ.مف.مذ.ج.زبلي.مؤ.زبلې]پـه تکليـف شـوے. ازاربـدلے. زپلے.

**زبنگ:** - (ز + بَ + ن + گ)[ق.حمص]او ـــــ زبنه.

**زبنه:** - (زَ + ب + نَه) [ق.حمص]تکليف رسَونه. آزارونه. زبنگ.

**زبـور:** -(ز+بو+ر) [ع.اس معرفـه. مـذ](۱) يـو اسماني کتـاب (صحيفه) چې پـه حضرت داؤد عليه السلام باندې نازل شوے وهٔ. پـه دې کښې دعـا گانې او مناجاتو نه دي.(۲) ليک. ليکلے شوے څيز.(۳) سندره. راگ.

**زبون:** - (ز+بو+ن) [فا. ص.مذ] (۱) خراب. خوار. خسته. عاجز. ضعيف (۲) ژبـه. زبان (بدل شکل).(۳) خوند. ذائقه.

پيـري راغـله زبون شوم که څهٔ نـور څـهٔ علامـه شوه
چې کړم زهٔ هغه نهٔ شي، هغه ملک ملک هغه عالم دے    خوشحال

**ـــــ حال:** -په بد حال. خوار. خسته. تپ کمزورے.

زهرې زهر رقوم راکړه زبون حال شوم
په اندوه مې چنگ بربط وهي خندا نه    حافظ

**ـــــ حاله:** - بې مجاله. بد حاله.

تور گېسو ئې له سنبله آب رانيسي
ابـرېشم و کاکل تـه زبـون حـالـه    حافظ

**ـــــ کول:** - خوارخسته کول. بې مجاله کول. عاجز کول.

هر زحمت چې په ما راشي شکرانه کړم
عـاشـقـي تـر هسې حـده کـړم زبـون    رحمٰن بابا

**ـــــ وهـل:** - اص(۱) څکـل. ذائقـه او خونـد معلومـول (۲) د ډېرې ويـرې نـه ژبـه بندېدل.

**زبونکـے:** -(زَ+بو + ن + کَے) [ق.اس ص.مـذ. ج. زبـونکي] تکليـف رسـوونکے. ازادي.

**زبون وهلے:** - (زبون+و+ه+ لَے) [پ.اس ص.مذ.ج. زبـون وهلي](۱) ويرېـدلے چې د ډېرې ويرې نه ئې ژبه بنده شوې وي. خاموشه. (۲) وړے.

**زبوني:** -(زَ+بو+ ني) [فا.اس.مؤ]خرابي. تباهي. خواري. کمزوري. بې عزتي.

**زبه:** - (ز + بَه) [پ (ظفر). اس.مؤ.ج. زبې]ازه. وزه. چيلۍ.

**زبه:** - (ز + بهٔ) [پ.اس.مؤ.ج. زبې]ژبه ـــــ جبه.

**زبی:** - (زَ + ب + ئی) [پ.اس.مؤ]ژبی. جبی. د ماشومانو يوه بيماري.

**ـــــ کېدل:** - اصد زبی يا ژبی بيماري لگېدل. عموماً چې د ماشوم نه مور د څهٔ وخت د پاره جدا شي نو په هغه دا بيماري اولگي. (۲) تشبيه د چاپه جدائي کښې د ژبې مرض لگېدل. د ملاقات بې کچه ډېر شوق پيدا کېدل. په بيلتون کښې بې قراري.

**زبيـب:** - (ز+بی+ب) [ع.اس.مـذ](۱) وچ کړي انگـور چې يـو قسم شـراب تـرې جوړېږي. وسکي. مويز. (۲) وچ کړي انځيران.

حافظ غريـب ديـدار زبيب د پـاک حبيب د پاره
غواړي هر دم فضل و کرم ستا بې پايان پراتهٔ دي

**زبيرگـي:** (ز+ بي+ ر+گي) [پ .اس .ج. مـذ. وا.زبيـرگے] زگېروی. فريـاد. ژړا. زوېرگي.

چاپېره ورته زبېرگيۀ د درد منو
پـوهه باندې د سرو ويـنو ژړا وه

**ـــــ کول:** -زوېرگي کول. زگېر وي کول. ژړا فرياد کول.

څـکـه نـهٔ کـوم زبېرگي د عشق لـه سويه
چې رقيب مې په وائے وائے باندې واه واه کا    علي خان

**زبېښ:** - (ز + بي+ ښ/ش) [پ.اس.مذ]د چوپلو يا رودلو طريقه.

**زبېښل**:- (ز + بي + خ/ش + ل) [اپ.مص مت] (۱) چوپل. رودل. زبېلل. (۲) په غېږ یا په لاس کښې مړل رامړل

ښائسته زنـخ ئې سبب د جـنتونو
په زبېښل ئې عاشق هېر قندو ترې کا — حافظ

**زبېښلې**:- (ز + بي + خ/ ش + لَې) [اپ.مف.مذ.ج. زبېښلي. مؤ: زبېښلې] چوپلې. رودلې. زبېللې.

**زبېښند**:-(ز+بي+خ/ش+ ن + د) [ق.اِس.مذ.مؤ: زبېښنده.ج.مؤ: زبېښندې] جاذب. څښونکې. څکوونکې. سيچټ.

**زبېښندوکې**:- (ز + بي + خ/ش + ن + دو + کَې) [ق.اِس.مذ.ج. زبېښندوکي] څوښې. چوسني.

**زبېښنګ**:- (ز + بي + خ/ ش + ن + ګ) [ق.حمص]و. زبېښنه.

**زبېښـنه**:-(ز+بـې + خ/ ش + نَـه) [اپ.حمص]چوپنـه. دودنـه. زبېلنـه. زبېښـنګ. زبېلنګ.

**زبېښـونکې**:-(ز+بـي+ خـو/ شـو+ن+ کـې) [اپ.اِس.فـاع. مـذ.ج. زبېښـونکي. مـؤ: زبېښونکې] چوپونکې. رودونکې. جاذب. زبلونکې.

**زبېل**:- (ز + بي + ل + ل) [ق.مص مت]و ـــــ زبېښل

**زبېللې**:- (ز + بي + ل + لَې) [ق.مف.مذ.ج. زبېللي. مؤ: زبېللې]

**زبېلنګ**:- (ز + بې+ لَ + ن + ګ) [ق.حمص]و ـــــ زبېښنه

**زبېلنه**:- (ز + بې + ل + نَه) [ق.حمص]و ـــــ زبېښنه.

**زبېلونکې**:-(ز+بې+ لو+ ن + کې) [ق.فاع.مذ.ج. زبېلونکي. مؤ: بېلونکې] و ـــــ زبېښونکې

**زبېنګې**:-(ز+ې+ګَې) [ق.اِس.مذ.ج. زبېنګي]خشـنګ. شـوخ. ترهـېدونکې. لاس نهٔ منونکې.

**زپ**:-(ز+پ) [اِپ.ص]عموماً د "زوړ" سره استعمالېږي لکه: زوړ زپ. په معني د ډېر زيات زوړ. بد حاله. کمزورې.

دا مې بخت دے چې وصال ئې له ما وشو
څـوان کـړي کـله اشنائي لـه زاړهٔ زپ — خوشحال

**زپ**:- (زِ + پ) [اَنګ.(ZIP). اِس.مـذ.ج. زِپونـه]يو زنځير شـان چې د قميص يا جرسي و غېره د غاړې بندولو د پاره د بټنونو په ځاے استعمالېږي. ګريوان. جيب وغېره د بندولو پرانستلو د پاره پکارېږي.

**زپل**:- (زَ + پ + ل) [اِپ.مص مت]تکليف رسول. ازارول. کړول. زبل.

**زپلتوب**:- (زپل + تو + ب) [اِپ.اِس.مذ]د زپلو يعني د اذيت رسولو کار يا حالت.

**زپلې**:-(زَ+پ+لَې) [اِپ.مف.مـذ.ج. زپلي. مـؤ: زپلې]ازپلې. ازارېـدلې. پـه تکليـف شـوے.

بېلتانهٔ مـو ساه صورت ښائسته خل مل کړ
د مـلـکو سوال ، د ګـور تـنـګـي. زپـلـيو — حافظ

**زپېدل**:- (ز+ پي+ د+ ل) [اِپ.مص مت]ازارېدل. تکليف رسېدل.

**زپېدلې**:-(ز+پي+د+لَې)[اِپ.مف.مذ.ج.زپېدلي.مؤ:زپېدلې]ازارېدلې. کړېدلې.

بېلتون د ستا په ما څهٔ اوکړو ګُلې
ډېـر زپـېدلې تـور بـورا شومه زهٔ — صادق الله اورکزے

**زټل**:- (زَ + ټ + ل) [ه.مذ]بېهوده خبره. اوتې بوتې. تشې خبرې. ډوزې.

**زټل باز**:- (زَټل+بـا+ز) [ار. اِس ص. مـذ] ډوزمـار. دورې مـار. خوشې او فضـول خبرې ويونکې.

**زټلي**:-(ز+ټ+لِي)[ار.اِس ص.مذ] دجعفرنوم يو شاعر تخلص چې زټل باز وهٔ.

**زټليات**:-(ز+ټ+ل+يا+ت)[ار.ا.س.ج]ډوزې. دورې. پوچې او فضول خبرې. اوتې بوتې.

**زجاج**:- (ز +جا + ج) [ع.اسم] (۱) ښيښه. شيشه(۲) د ښيښې پياله. يا ګلاس.

د اغيار سـره يـو دم نـاستے ښهٔ نهٔ دے
هېڅ خپلوي مې د زجاج او د سنګ نهٔ ده — خوشحال

**د ـــــ لوښے**:- اِص.د شيشې جوړ لوښے. د شيشې پياله يا ګلاس.

د اجل په سنګرېزه به دې سرمات شيکه دې
اوسـاتي څـوک لـوښے د زجـاج — خواجه محمد

**زجاجي**:-(ز+جا+جي) [صف.]د زجاج يعني د شيشې نه جوړ شوے د ښيښې ښيښني لوښې وغېره.

**نجر**:- (ن+ج+ ر) [ع.اِس.مذ]رټنه. منع کونه. دپکه ورکوونه. زورنه.

**ـــــ و توبيخ**:- اِص.لعنت. ملامت. دوړه دپکه. ډېر رېرونه. دپکه درکه. رټنه کوټنه.

**زچګي**:- (زَ+ چ+ ګي) [ف.]بال بچ راوړلو سره متعلق. لنګتانه لنګون. د بچي زېږدنه.

**د ـــــ ورځې**:- اِص.د ماشوم د پېداوښت نه تر څلويښتو ورځو پورې ميعادته د زچګي ورځې وائي.

**زچه**:- (زَ + چ +ه) [ف.مؤ]هغه ښځه چې د لنګون په ورځو کښې وي. (عموماً دا څلويښت ورځې وي).

**ـــــ خانه**:- (زچه+خا+ نَه) هغـه خـاص ځـاے يا کوټه چې هغـه ماشومان پېدا کولې شي. د لنګون ځاے يا کوټه.

**ـــــ وبچه**:- اِص. نوے زېږېدلے ماشوم او مور.

**زحاف**:- (ز+حا+ف) [ع. مذ.ج. زحافات]د علم عـروض يـوه اصطلاح ده چې د شعر په وزن يا بحر کښې معمولي شان کمے زياتے او کړے شي.

**زحل**:-(ز+ح+ل) [ع.اِس.مذ]د يوے مشهورے سيارے نوم چې د زمکې په شان نمر نه چاپېره چاپېره ګرځي او خپل يو چکر (ګردش) د زمکې په حساب په ۲۹ ۲/۱ کالو کښې پوره کوي د نمر نه ۸۸ کروړه ميله لرے ده. او قطرئې ۷۴۲۷۰ ميله دے. دا سياره سپېره ګڼلې شي. دې ته سنيچر هم وائي او په دې وجه د سنيچر يعني د خالي ورځ سپېره ګڼلې شي. (دا اسلامي عقيده نهٔ ده).

راتـه نـهٔ کړه زُحل حل د فرح غوټه
لائې سخته کړه له بُغضه له عدوانه — حافظ الپوري

**زحمت**:-(ز+ح+م+ت)[ع.مؤ.ج.زحمتونه] (۱) تکليف. مصيبت. محنت.خواري. زيار. (۲) رنځ. بيماري. ناروغتيا.

چې زمـا زحمت پېغور ګـڼي و مـاته
ما هغه د ځان په شان ؤ ليدلې دربغه — رحمٰن بابا

**ـــــ په ځان اخستل**:-اِص.سختي په ځان تېرول. تکليف په ځـان تېرول. غمېدل. ربړېدل.

**ـــــ کش/کښ**:-اِص.(۱) زحمـت کـوونکې. محنـت مشـقت کـوونکې تکليـف کوونکې. (۲) مزدور. خواري کښ. زيارکښ.

**ـــــ کشي / کښي**:-(+ک+شي) [اِپ.اِس] اِص.رحمت کوونـه، محنت کوونـه. مزدوري. محنت.

**ـــــ ورکول**:- اِص.تکليف ورکول. چاته د څهٔ کار د کولو تکليف ورکوول (۲) چاتـه دراتللو بلنـه ورکوول.عموماً د بـل داحتـرام د خـر ګندولو پـه موقـع وئيلې شي. يعني تاته مې دا دے کار کولو تکليف درکړو.

**زحمتي**:-(زَ+خ+م+تي) [اِپ.اِس]زحمت کښونکې. تکليف کونکې.زحمت والا. په تکليف کښې.

**زحير**:- (زَ + حي + ر) [ع.اِس.مذ]پېچش. نس خوږے. مرورې. د تاؤ مرض.

**زخارف**:- (زَ+ خا +ر + ف) [ع.اِس.و: زخرف]د زخرف جمع ده. (۱) هغـه نـرے چينجے چې داوبو په سر الوزي. زخارف الارض. رنګ په رنګ واړه بوټي.

**زخت**:- (ز+خ+ ت) [اِپ.ص.مذ.مؤ: زخته]زښت. زيات. ډېر. لکه: زخت لوے.

ډېر لوی.

**زخته**:-(ز+خ+ته) [ق.اس.مؤ.ج. زختې]یو قسم وابنهٔ دی چې دپسرلي په شروع کښې راټوکېږي. وبخ ئې ماشومان خوري.

**زخار**:-(زَ+خا+ر)[ع.صف.]موجونه وهونکی په غورزنګونو. (عموماً دلوی سمندر یاد بحرد صفت په طور استعمالېږي. لکه بحرِ زخار) جی په جی. غاړې په غاړې.

**زخر**:- (ز+خ+ ر) [اس.جنس]د زهر غلط عوامي تلفظ(و ـــــ زهر)

**زخرف**:-(ز+خ + ر+ ف) [ع.اس.مذ] (۱) ښکلی. آراسته. (۲) داسې خبرې اترې چې په کښې د تشبیهاتو او استعارو استعمال ډېر شوی وي.(۳) دروغ. د مبالغې نه ډک کلام هغه کلام چې ظاهرئې یو شان وي او باطن ئې بل شان. ملمع سازي. منافقت. (۴) د قران مجید د یو سورت نوم.

**زخم**:-(ز+خ+م) [ف.اس.مذ.ج. زخمونه] (۱) پرهار. ټپ. غوخه. (غوخ شوی ځای) (۲) نقصان. صدمه.

ځرنګ خوږ دی د یار زخم چې مجروح دی
همېش دواړه لاس پــــه سر دي لـــه درمـانو رحمٰن بابا

ـــــ **پخېدل**:- اص.د پرهر نوکوول.

ـــــ **په ځان تېرول**:- اص.ټول تکلیف په ځان تېرول. تکلیف زعمل.

ـــــ **تازه کېدل**:-اص. (۱) پرهرتازه کېدل. زیاتېدل یا د زخم د خلې نور هم ارتېدل. (۲) تېز درد، تکلیف یا صدمه رایادېدل.

ـــــ **خنداں**:- اص.خندېدونکی رخم. هغه پرهر چې ګنډلی شوی نهٔ وي او ارته خوله ئې نیولې وي.

ـــــ **خوړده**:- اص.(۱) زخمي. پرهار ژلی. ژوبل.(۲) غمزده. چې څهٔ دک یا نقصان و رسېدلی وي.

ـــــ **خوړل**:- اص.(۱) زخمي کېدل. ژوبل کېدل. (۲) زغم، صدمه یا سخت تکلیف تېرول.

ـــــ **دل**:- اص.د زړهٔ پرهر. سخته صدمه. غم. درد. دوک.

ـــــ **ډکېدل**:- اص.(۱) پرهر راډکېدل. زخم ښهٔ کېدل زخم په جوړېدو راتلل.
(۲) تاوان یا نقصان پوره کېدل. د زیان عوض موندل.

ـــــ **راښکلي کېدل**:- اص.د پرهر خوږېدل او درد کول.

ـــــ **شلېدل**:- اص.زد زخم ټکونه سپړدلي کېدل. د زخم ټکونه پرېکېدل.

ـــــ **شنه کول**:-اص.زخمونه تازه کول. نوې صدمه رسوول. تېره صدمه یا تېرغم بیا وریادول. داسې زخم چې پوټ ترې نه لرې کړې او بیا تازه شي. اصطلاحاً دې ته وئیلی شي چې څوک تېر غم بیا سر دوباره یاد کړي.

ـــــ **شنه کېدل**:-اص. زخمونه تازه کېدل. نوې صدمه پېښېدل. تېره صدمه یا تېر غم وریادېدل.

ـــــ **کول**:- اص.پرهر کول. زخمي کول.

ـــــ **کېدل**:- اص. پرهر کېدل. زخمي کېدل.

ـــــ **لګېدل**:-اص.(۱) پرهر کېدل. (۲) تاوان یا زیان کېدل. صدمه رسېدل.

ـــــ **ورکول**:- اص. زخمي کول. نقصان یا ازار رسوول. صدمه رسوول.

**په ـــــ مالګه دوړول**:- اص.په پرهر مالګه اچول. ازارول. یو تکلیف دپاسه بل تکلیف رسوول. دردېدلی نور هم دردول.

**په زخمونو چوري کېدل**:- اص. ډېر زیات پر هرونه کېدل. ډېر زیات زخمي کېدل. په ټول وجود پرهرونه کېدل. ډېر ژوبل کېدل.

**د زخم انګور**:- اص.د پر هر انګور. پرهر چې په راډ کېدو وي. غوښه په کښې پیدا شي او راډک شي.

ـــــ **رسا او کاري**:-اص. غرښن او لوی پرهر چې ترې نه ژوبل شوی مړشي.

**غل ـــــ**:- اص. پټ پرهر یا زخم. داسې زخم چې دننه وي او د پاسه نه نهٔ معلومېږي.

**زخمه**:-(ز+خ+مه) [ع.اس.مؤ]مَضراب. د لرګي هډوکي یا د بل څهٔ کلک څيز یوه وړه درې ګوټه ټوټه چې رباب پرې غږوي. نری ډکی یا تیلی چې تمبل مارئې په خپلې ګوتې پورې ترې. د ډول وهلو ورکوټی شان لرګی.

**زخمي**:-(زَ+خ+مي) [فا. ص.ج. زخمیان] پرهر ژلی. ژوبل. چې رخم یا پرهر وي پرې چې په وجودئې زخم شوی وي.

ـــــ **کول**:-اص. پرهر په کښې کول. ژوبل کول.

ـــــ **کېدل**:- اص. پر هر ژلی کېدل. ژوبل کېدل.

**زخن**:- (ز+خ+ن) [پ.اس.مذ.مو: زخنه: ج: زخني](۱) هغه سړی چې په مخ زخه لري. زخي والا(۲) هغه ټوپک وغېره چې د نخښې براب ولو د پاره ئې د نالې په سر یو وړه شان دانه لګېدلې وي. زخي والا. زخ دار.

**زخه**:-(ز+خه) [پ.اس.مؤ.ج: زخې](۱) په بدن یو قسم سخته غوټه چې د دانې په شکل کښې باهر ته راوځي.(۲) غوټه. (۳) خنډ.

پرېکول ئې درد لري پرېښول ئې عېب دی
نــاخـلـف دی د پــدر پـــه مخ کښې زخه معزالله خان

ـــــ **ختل**:- اص.په مخ زخه پیدا کېدل. نری توره شان دانه چې عموماً په مخ راخیژي.

ـــــ **تر زخې لاندې راویستل**:-اص. د ټوپک وغېره نخښه پرې برابرول. د ټوپک تماچې وغېره په زد کښې راوستل.

**زخه خیل**:- (زخه + خي + ل) [پ.اس معرفه. مذ. مؤ: زخه خیله](۱) په پښتنو کښې د افریدو قبیلې یوه څانګه. (۲) هم د دې قبیلې یو کس.

**زخیره**:- (ز + خي + رَه) [فا.اس.مؤ.ج: زخیرې]زہیرمهل. پاسره. ځورې

**زد**:- (زَ + د) [فا.اس]ګذار. ضرب

ـــــ **کښې**:- اص.د نښانې دننه. په داسې ځای کښې چه د ټوپک وغېره نښانه پرې لګېدې شي.

**زد**:- (زَ + د) [ق.اس.مذ]اثر. تاثیر.

ـــــ **کول**:- اص.اثر کول. تاثیر کول.

**زد**:- (ز + د) [پ(ظرف).اس.مذ] ژاوله. کنډ.

**زد**:- (ز + د) [ق.اس.مذ](۱) ضد. جهل. سرکشي (۲) د دریاب لار.

**زدا**:-(ز+ دا) [ف. ]لاحقه ده. نورو الفاظو پسې لګي او معنې د صفا کوونکی ورکوي. لکه غم زدا. غم لری کوونکی.

**زدایت**:-(زَ+دا+يَ+ ت) [ق.اس.مذ]اولاد. کورنی. خاندان. نسل. زاوذات.

**زدراني**:- (ز + د+را+ني) [اس.مع] د پښتنو د یوې قبیلې نوم.

**زدګان**:- (زَ + د + ګا + ن) [فا. لاحقه. جمع]وهلی شوی. لاحقه ده. چه الفاظو نه ورستو راوستی شي. لکه مصیبت زدګان.

**زدلاندې**:-(زَ+د+لا+ن+دې)[ق.مذ]داثر لاتدې. نښانې لاتدې. نخښې ته برابر.

**زدن**:- (زَ + دَ + ن) [فا.مص](۱) وهل. ضرب یا ګذار ورکوول.

**زدوار**:-(ز+د+وا+ر) [فا.اس.مذ]د یوې جرړې نوم دی چې د زهر د لرې کولو د پاره پکار روستی شي.

**زدوکوب**:- (زَ + د+و+ کو + ب) [فامر]وهل ټکوول.

**زدول**:- (ز+د+و+ل) [فپ. مص]وهل. ډبوول.

(د فارسي زدن نه اخستی شوی دی. عام نه استعمالېږي.

**زدوول**:-(ز+دو+و+ل) (د فارسي د زدودن مصدر نه پښتو کړی شوی دی. چې عام استعمال ئې نه شته). (۱) صیقل کول. زنګ لرې کول. صفا کول. (۲) لرې کول. زدویل.

چې پـــه هره پیاله عقل له ماز دوي
د ساقي منت راباندې په بار بار شته خوشحال

**زدولے**:-(ز+دو+و+لے) [ق.مف.مذ.ج. زدوولي. مؤ: زدوولې]صيقل کړے. صفا کړے زنګ لرے کړے. زدويلے.

**زدوونګ**:- (ز + دو + وَ + ن + ګ) [ق.حمص]او ـــــ زدوونه

**زدوونه**:-(ز+دو+و+نه) [اپ.حمص]صيقل کوونه. صفا کوونه.زنګ لرے کوونه. زدوونګ. زدوينه. زدوينګ.

**زدوونکے**:-(ز+دو+ؤ+ن+کے)[اپ.فاع.مذ.ج.زدوونکي.مؤ.زدوونکې]صيقل کوونکے. صفا کوونکے. زنګ لرے کوونکے. زدويونکے.

**زدويل**:-(ز+د+و+ي+ل)[او. زدول]

**زدويلے**:-(ز+د+و+ئ+لَے)[ق.مف.مذ.ج.زدويلي.مو: زدويلې]او ـــــ زدوولے.

**زدوينګ**:- (ز + د + و + يَ + ن + ګ) [ق.حمص]او ـــــ زدوونه

**زدوينه**:- (ز + د + ؤ + ئ + نه) [ق.حمص]او ـــــ زدوونه

**زدويونکے**:-(زَ+د+و+ن+کَے)[ق.فاع.مـــذ.ج.زدويونکي.مؤ.زدويونکې]او ـــــ زدوونکے

**زده**:- (ز + دَ + ه) [اپ.ص]معلوم. ياد. حفظ.

ـــــ **کړې**:- اِص. هغه څه چې سړي زده کړے وي. حاصل کړے علم.

ـــــ **کړياني**:- اِص.د زده کړې جمع. زده کړې.

ـــــ **کول**:- اِص. تعليم کول. يادوول.

ـــــ **کېدل**:- اِص.يادېدل. حفظ کېدل. په علم کښې راتلل.

**زده**:-(ز+د)[اپ.لاحقه](۱) وهلے، وهلے شوے.(۲) لاحقه ده. د الفاظو نه وروستو لګولے شي. لکه غمزده.

يـو ځـل بيا له زېبا مخه پلو واخله
دا په غم کښې پراته لا په غم زده کړه    خوشحال

ـــــ **کول**:- (په غم) وهل (په غم) غمزده کول. غمژن کول.

ـــــ **کول (دليل)**:- (دعربي د ضرب په معني کښې دے). ورکوول. وړاندې کول. (دليل مثال وغېره)

عالمان دي رهزنان چې غوارې نغارې
عـام عـالـم لـره زده کړي څو دليله    خوشحال

**زده کړوځے**:- (ز + دَ + ک + ړو + ځ + ے) [اِس.مذ]هغـه ځـاے چې زده کړه په کښې کېږي. مدرسه. مکتب.

**زده کړونکے**:-(ز+دَ + ه + ک + رو + ن + کے) [اپ.فاع.مـذ.ج. زده کړونکي. مؤ: زده کړونکې]زده کوونکے. زده کړونے. شاګرد. علم حاصلوونکے.

**زده کړونے**:- (ز + دَ + ه + ک + ړو + نَے) [اپ.فا.ع.مذ.ج. زده کړوني] زده کوونکے. زده کړه کوونکے. طالب (علم)

**زده کړه**:-(ز+دَ+ه+ک+ ړه) [اپ.اِس.مؤ.ج. زده کړې]تعليم. علم حاصلول.

**زده کـړے**:- (زده+ک+ړے) [ق.اِس.مـذ.ج. زده کړيـان. مـؤ.وا: زده کـړې. ج. زده کړيانې]شاګرد. زده کوونکے. علم حاصلوونکے.

**زده کـړے**:- (زده+ک+ړے) [اپ.مف.مـذ.ج. زده کـړي. مـؤ: زده کړې] اموختـه کړے. حفظ کړے. ياد کړے.

**زده کونه**:- (زده + ک + ؤ + نَه) [اپ.حمص]علم حاصلونه.

**زده کوونکے**:- (زده + ک + وو + ن + کے) [اپ.فاع.مـذ.ج. زده کـوونکي. مـؤ: زده کوونکې]شاګرد. متعلم. علم حاصلوونکے.

**زدۍ**:- (ز + د + ئ) [ق.اِس.مؤ] صدۍ. سل کاله.

**زر**:- (ز+ر) [اپ.اِس.عدد. مـذ.ج. زرونـه. زرګونـه](۱) لـس سـوه.په مرکب. عـدد کښې زره هم راځي. لکه: لس زره پنځلس زره وغېره.(۲) ډېر. بې شمېره.

څوک چې په اخلاص وبله مئين شي په دنيا کښې
زر ســازي نـاسـاز يېــه دنـيا کښې اٰواره کـا    خوشحال

**مه ـــــ زرو**:- اِص.په زرګونو. په زرها.

**زر**:- (ز + ر) [اپ.ص]جلتي. فوراً. سمدستي.

ـــــ **په زر**:- اِص.مخې سره. فوراً. سمدستي. لاس په لاس. په تادۍ.

ـــــ **ترزر**:- اِص. ډېرزر. په لږ ساعت کښې. مخې سره. د زر نه هم وړاندې

ـــــ **شه اش**:- (امر) په يو کار کښې د تادۍ کولو د پاره وئيلے شي. يعنې تـادۍ اوکړه. په جلتۍ سره (د اکار) وکړه.

ـــــ **کليزه**:- (ک+ لي + زَه) [د چا لـوے سړي د مرګ يا د کومې لوئې کارنامې نه پس چې زر کاله برابر شي نود هغې ياد مناوول زر کلن. هزار ساله (جشن يا ياد ګيرنه]

ـــــ **کول**:- (پ.مص)فوراً کول. سمدستي کول. په تادۍ سره کول.

ـــــ **کېدل**:- (پ. مص) [سمدستي کېدل. مخې سره کېدل. بغېر ډېل يا تاخير نه کېدل]

ـــــ **وتل**:-اِص. زر پورې وتل. په لږ وخت کښې يوې غاړې نه بلې ته رسېدل.

**زر**:- (ز+ر) [فـا.اِس.جنس](۱) سرۀ زر (۲) سپين زر (دې سره عمومـاً د سپين لفظ. راوستے شي).(۳) پيسې. مال دولت.

ـــــ **اوبۀ**:- اِص.زروبۀ د سپينو يا د سرو زرو اوبۀ. (عموماً د سرو زرو اوبۀ استعمالېږي)

ـــــ **بالائي**:- اِص.بره نۀ راتلونکي زر. بالاۍ. امدن. رشوت. بډې.

ـــــ **بنده**:- اِص.د زرو غلام. ډېر حرصي. ډېر حريمي.

ـــــ **پرست**:- اِص.(۱) د زرو عبادت کوونکے. مجازاً هغه سړے چې زرو سره (دولت سره) بې کچه ډېره مينه لري.

ـــــ **پېرودے**:- اِص.زر خريد. په بيعه اخستے شوے.

که ترۍ مې زر خريد ګرځي بې شماره
و خپل يـار زرپېرودے د حبش يـم    خوشحال

ـــــ **ثمن**:- اِص.د بيعې زر. هغه روپۍ چې د څيز په خرڅولو لاس ته ورشي.

ـــــ **زر خالص**:- اِص.کره زره. سرۀ زر. چې څۀ ګډون په کښې نه وي.

ـــــ **خريد**:- اِص.(۱)د زرو په بدل کښې په بيعه اخستے شوے. په زرو يا په مال اخستے شوے. (۲) مجازاً غلام. مريې.

زمانه پـه خلقو هسې ازمېښت کا
چې يوسف د قبطيانو زرخريد شۀ    خوشحال

ـــــ **خريده**:- اِص.په زر يا په بيعه اخستے شوے. وينځه.

وينځه زر خريده چې کم ستره کم حياوي
ولې د مېرمنې پـه برقع پـه خمار بلوسې    حافظ

ـــــ **خېز**:- اِص.چې زر ترې پورته کېږي. زر پيدا کوونکے (زمکه). ډېر پيداوار (فصل) ورکوونکے زمکه. اباده. داوبو لاندې او غوړه زمکه.

ـــــ **خېزي**:- اِص.ډېر فصل يا پېداوار ورکوونکے زمکه چې په بدلـه کښې ئې ډېر زر لاس ته راځي.

ـــــ **دار**:- اِص. زر لرونکے. دولتمند. شته من.

کـــه زردار وي اشـــنايان د زر دارو
د رحمٰن د اشنايانو تکيـه خداے دے

ـــــ **ذري**:- اِص.کيمخواب. د سرو زرو په تارو اودلے.

کمخواب د سرو زرو پـه تارو اودلے
سر تر پايه ذر ذري جامې اغوستې    خوشحال

ـــــ **شندل**:- اِص.پيسه خرڅ کول. سخاوت کول.

ـــــ **زرقلب**:- اِص.کوټه زر. ناسره زره. د سپينو يا سرو زرو کوټـه سکه د روپئې اشرفۍ. پونډ وغېره)

ـــــ **کش**:- اِص. لفظي زر راښکونکے. په جنترۍ کښې د زرو په راښکلو د زرو تارونو جوړونکے.

**ـــــ کوب:-** اص. زر ټکوونکی. هغه کس چې په ټکوولو ټکوولو د زرو ورقونه جوړوي. د زرو ورق جوړوونکی.

**ـــــ کوبي:-** اص. د ذر کوب کسب. د ورقونو د جوړولو فن یا کسب.

**ـــــ ګون:-** (زر+ګو+ن) د (سرو) زرو په شان رنګ لرونکی. زري رنګی.

**ـــــ لګول:-** اص. پیسې لګول. مال دولت خرڅ کول.

**ـــــ زرناب:-** اص. خالص زر. کره یا سرهٔ زر.

**ـــــ نګار:-** اص. (۱) زري چې د سرو زرو د تارونو کار په کښې شوې وي. (۲) **هغه** تصویر یا لیک چې په کښې د سروزرو اوبه استعمال شوې وي. (۳) **ملمع** شوې.

سر تر پایه ذر ذري جامې اغوستې
سر تتر پایه زرنګار دے هغه کس — خوشحال

**ـــــ ورکول:-** اص. (۱) زر پیسه ورکول. مال دولت ورکول. (۲) روبې ورکول. د زرو اوبهٔ ورکول.

**په ـــــ او زور:-** اص. په پیسې او په طاقت.

هر څوک خپله خوشنودي له خدایه غواړي
ولې نهٔ شي دغه کار په زر و زور — رحمن بابا

**زراب:-** (زَ+را+ب) [ف تر. اس. مذ] د زرو اب مرکب دے یعني د سرو زرو اوبهٔ.

**ذراصل:-**(ز+ر+ا+ص+ل) [فا. تر. اس ص. مذ]اصل پنګه. اصل زر. راس المال.

**زراعت:-** (زِ+را+ع+ ت) [ع. اس. مؤ] (۱) کرکرونده. کرکیله. کاشت کاري. (۲) پټې. فصل

کذب د هر چاټ په نېک عمل باندي ړلی ده
د ړلی نهٔ شي د عمل په زراعت — رحمن بابا

**ـــــ پیشه:-** (زراعت + پې + شَه) [ف تر. صف]چې پېشه ئې کرکرونده وي. زمیندار. کاشت کار.

**ـــــ کول:-** اص. کر کرونده کول. کرل. تخم اچول.

هم هغه به ئې خرمن وي پس له مرګه
هر چې کاندې زراعت په دا دنیا — رحمن بابا

**زراعتي:-** (زِ + را + عَ + تي) [ص. ]د زراعت سره تعلق لرونکی.

**ـــــ آفتونه:-** اص. هغه افتونه او مصیبتونه چې په زراعت (فصل وغېره) پرېځوي.

**ـــــ اقتصاد:-** اص. هغه اقتصادي او مالي مسئلې چې تعلق ئې زراعت (کر کروندې) سره وي.

**ـــــ ماشینونه/ مشینونه:-** اص. هغه مشینونه چې په زراعت (د کرکروندې په کار) کښې پکارېږي.

**ـــــ مملکت/ ملک:** اص. هغه ملک چې د امدن ذریعه ئې زیاته په کرکرونده وي.

**زراف:-**(ز+را+ ف) [اس. مذ. مؤ: زرافه ج: زرافې]د یو لوے قد و قامت عجیبه ځناور چې په افریقه کښې موندے شي. سر او غوږ ونه ئې د اوښ په شان، سترګې د اوسې په شان بهر ته راوتې، کپې ئې دغوا په رنګ. څټ (مرې) ئې د اوښ په شان خولګه مخروطي ژبه باهر ته راوتې او رنګ ئې د زمري یا پړانګ په شان. پښې ئې د اوښ په شان خو وروستنۍ پښې ئې د مخکینو نه لنډے وي.

کسب دې سبب د رزق رازق باري دے
هنده په تور ځنګل کښې پېل زرات ته — حافظ الپوري

**زرافه:-** (ز+را+ فَه) [اس. مؤ. ج: زرافې]و ـــــ زراف

**زرافشان:-** (زر+اَف + شا+ن) [فا پر. صف]زرنو ستونکی. زرپاشونکی. ډېر مال دولت خرڅ کوونکی.

**ـــــ افشاني:-** اص. (۱) زر نو ستل. زر پاشل. (۲) ډېر مال دولت لګوونه. مال په ارت مټ خرڅ کوونه. (لکه چې نولي ئې)

**زرامے:-** (ز + را + مَے) [ق. اس. مذ. ج: زرامې]قطره څاڅکی.

**زراوند:-** (ز+را+ و+ن + د) [اس معرفه. مذ]د یوې دوای نوم.

**زرب:-**(ز+ رَ + ب) [ق. اس. مذ] (۱) ډېره زیاته یخني. (۲) د بدبه. هیبت. زرپ.

**زرباف:-** (زر+ با+ف) [فامر. اس ص. مذ. ج: زربافان]ازر بفت اودونکے. **هغه** کپړه اودونکے چې په کښې د زري تارونو کار شوے وي. زري رخت یا ټوکي اودونکے.

د وۀ دے حاجت څهٔ غواړې سعید نه
-د حبصر وۀ دنه څرنګ له زرباف شي

**زرباقي:-** (ز+ر+با+ق+ ي) [فا. اس. مؤ]د زر بفتو جوړولو کسب. **د هغه** ټوکي یارخت اودنه په کوم کښې چې زري تارونه استعمالېږي.

**زر برخ:-** (زَ+ ر+ب+ر+ خ) [افپ تر. مذ. ج: زربر خونه] (۱) د زرو ورق. د زرو پاڼه (۲) ابرک.

**زر بفت:-** (زر+ب+ف+ت) [فا. اس. مذ]هغه ټوکے (کپړه) چې په ربښمو او په زرین تارونو اودل شوے وي.

په جامه چې د زربفت څوک رعنائي کا
د ملخي لباس هم هسې زیبائي کا — سعید

**ـــــ پوښه:-** اص. هغه ښځه چې د زربفتو نه جوړې جامې ئې اغوستے وي. زر بفت یوه قیمتي ریښمینه کپړه ده.

د محل دننه ناستې زربفت پوښې
جوهړي ته ؤځي پړې وځي په غوشېړي — خوشحال

**زربفتي:-** اص. د زر بفتو (د کپړې) نه جوړه شوې جامه وغېره. د کمخوابو نه جوړ شوے رخت وغېره.

**زربوزے:-** (ز +ر+ بو+ زے) [ق. اس. مذ]یو قسم زري کار چې زنانه ئې د خپل قمیص په سینه بند باندې کوي.

**زربیانک:-** (ز+ر+ب+یا+ن+ګ) [ق. اس. مذ]د موچیانو یو قسم اله چې څرمن پرې تراشي او هوار وي.

**زربیره:-** (زَ+ر + بي + ر+ه) [ق. اس. مؤ. ج: زربیرې]یو قسم وابښهٔ دې چې وچ ئې کړي او بیائې میده کولو نه پس دنسوارو په ډول استعمالوي.

**زر بیعانه:-** (زَ+ ر + بے + عا + نَ) [فا. اس ص. مذ] د سائي رقم. هغه روپۍ چې د څهٔ څیز د سودا کولو نه پس په طور د سائي پېشګي ورکولے شي چې که هغه په میعاد کښې دننه نور رقم ورنهٔ کړي نو دغهٔ د بیعانې روپۍ به ئې او سوځي یعني نهٔ به واپس کېږي.

**زرپ:-** (ز + رَ + پ) [ق. اس. مذ]و ـــــ زرب

**زر پښ:-**(زَ+ر+پ + ش/ خ) [پ. اس ص. مذ]زرګو. د زروکالي جوړوونکی.

**زرپیرلے:-**( زر+پې+ ر+ لے) [افپ تر. مذ. ج: زر پېرلي]په زرو اخستے. زر خرید

**زرتار:-**(زر+تا+ر) [فاتر. اس. مذ] (۱) د زرو تار (۲)چې د زرو تارونو کار په کښې شوے وي.

**ـــــ تاري:-**اص. هغه ټوکے یا کپړه چې د زرو د تارونو کار په کښې شوے وي.

**زرتشت:-**(ز+ر+ت+ش+ت) [فا. اس معرفه. مذ]یو مشهور فلسفي چې د زرتشتي مذهب باني وۀ. د اتش پرستانو پیغمبر. زردشت.

**زرتله:-** (زَ + ر + تَ + له) [پ. اس ص. مؤ]هغه تله چې زر پرې تلي- کنډه.

**زر ټوکے:-** (زَ+ر+ټو+ کَے) [ق. اس. مذ. ج: زر ټوکي]هغه کپړه چې زري کار پرې شوے وي. کیمخواب وغېره.

**زرتیا:-** (ز + ر + ت + یا) [پ. ص. مؤ]زر والے. تادي. عجلت. بېړه.

**زرغ:-** (ز + ر + غ) [ق. ص. مذ. مؤ: زر غه. ج: زرغې]سور شین بخن رنګ.

**ـــــ سترګي:-**اص. هغه سرے چې زرغې سترګې لري. شنې سور بخنې

سترګي.

**زرځي**:-(ز+ر+ځ+ي) [ق.اِس.مؤ]یو قسم بدبویه توره ختیه. تور زیبه. تارکول. زر نیے. زرنځي.

**زرځے**:- (ز+ر+ زَے) [ق.اِس.مذ.مؤ: زرځې]هغه ګډ چې د غوږ ونو او سترګو چاپیره ئې زیړو ښنتهٔ وي.

**زرخېز**:- (ز+ر+ خي+ ز) [فا.ص.مذ.مؤ: زرخېزې]ښېرازه. شنه تازه. اباده. ډېر پېداوار کوونکے.

**زرد**:- (ز+ر+ د) [فا.ص.مذ]زیړ.زیړرنګے. د پیتلو په شان رنګ.

**ـــــاب**:- (زرد+ا+ ب) زیړې اوبه. هغه زیړرنګے اوبه چې د زخم یا ننکی نه رابهېږي. زوے پیپ.

**ـــــالو**:-(زرد+ا+لو)[ف مر.اس.مذ]د خرمانو یو قسم. چې رنګ ئې زیړوي.

**ـــــچوب**:- (زرد+ چو+ ب) [فاتر.مذ]زیړلرګے د یو غرئیز بوټي لرګے اوبو ساتکے چې په دارو کښې پکارېږي.

**ـــــرو**:-(زرد+رو) [فاتر. مذ مؤ](۱) زیړ مخے. هغه چې د مخ رنګ ئې زیړ وي. زیړ ګونے. (۲) هغه چې د ډیرې ویرې ئې رنګ تښتېدلے وي او مخ ئې زیړ شوے وي. ویرې اخستے. وار خطا. (۳) کچه. شرمنده.

**ـــــروی**:- اِص.زیړ مخ. شرمندګي.

مـا رحمٰـن د یـار وصـال پـه اشـنای مونـدلے نـهٔ دے
زرد روئـي مـې رخروئـي پـه ځیګـر خـون شـوه الغیـاث

**زردک**:- (ز +ر+ د+ک) [ف.اِس.مذ](۱) ګاځره. (۲) زیړه.

**زرده**:- (ز+ ر+ د+ه) [اِس.مو](۱) یو قسم خوږې وریژې (وریجې) چې د رنګ اوخوند د پاره په کښې زعفران اچولي شوي وي.(۲) پان کښې د اچولو د پاره خاص قسم تمباکو.

**ـــــلګول**: – اِص.په پان کښې خوراکي تمباکو اچول.

**ـــــزرده ګونه**:- اِص.زیړ رنګ. زیړ مخ. د کمزورۍ نخښه.

**زردار**:-(ز+ر+دا+ر) [فـا. اِس ص. مـذ. ج: زرداران. مـؤ: زرداره. ج: زردارې]زر لرونکے. دولتمند. مالداره.

زرداران مه اوبهٔ ښکې په جام د زرو
ما غریب لره د خاورو کنډول بس دے رحمٰن بابا

**زردشت**:-(زر + دَ+ ش + ت) [اس.مع.مذ]د ایران یو پخوانے مصلح او فلسفي. د مجوسیانو یعنی د اتش پرستو پیغمبر او ددې مذهب باني چې څهٔ درې زره کاله پخوا تېرشوے دے چې اوستا ددهٔ کتاب دے چې ژند اوستا هم ورته وائ. ددې کتاب ژبې ته هم اوستا وائي چې پښتو سره ئې ټینګه خپلولي ده.

**زردګ**:-(ز+ر+د+ک) [ف.اِس.مذ](۱) ګاځره. مشهوره میوه (۲) کفایهً د سړي عضو تناسل.

**زردکه**:- (ز+ر+د+ کَه) [پ.اِس.مؤ.ج: زردکې]یو قسم مرغۍ.

**زردوز**:-(زر+دو+ ز) [فا.اِس ص.مذ]هغه سړے چې د زرې ټوکو داودلو کسب کوي. زرباف (۲) هغه سړے چې د زرې تارونو (طلا) کار کوي. د طلې پنې، کلاه وغېره جوړوي. (۳) هغه سړے چې د سلمه ستارې کار کوي.

بـو الهـوس د عاشقۍ ته هوس نهٔ کا
دا روغ دې چې زر دوز شي بوریا باف رحمٰن بابا

**زردوزي**:- اِص.(۱) د زرې تارونو کار کسب. (۲) د طلې د تارونو کار کوونکے چې عموماً په څرمنه کولے شي. (۳) د سلمه ستارې کار.

**زردوم**:- (ز+ ر+ دو + م) [ق.اِس.مذ]زهرقاتل.

**زردي**:- (ز+ر+ دی) [ف.صف](۱) زیړ والے. زیړ رنګ. (۲) د اګو زیړ. (۳) د ګل په مینځ کښې د زیړ رنګ برخه. د ګل تخم.

**زرډانګے**:- (ز+ر+ډا+ن+ ګے) [ق.اِس.مذ.ج: ډانګي]یو کروه مسافت.

**زرشک**:-(زَ+رِ+ش+ک) [ف.اِس]د یوې میوې نوم چې دسرې میوې (نشمس) نه وړه او اوچه وي. په دارو کښې استعمالېږي (خوندئې خوږ تریو وي)

**زرِدهن**:- (ز+ر+ر+ه+ن) [فاتر.اِس ص. مذ]د ګاڼې روپۍ. هغه روپۍ چې دَ څهٔ ځیز په ګاه کولو لاس ته راځي.

**زرز**:- (ز+ر+ ز) [و ـــــ زرځ]

**زرزپو**:- (ز+ر+ز+پو ) [ق.اِس.مذ]څهٔ ځیز ناځاپه ګذارول. ناځاپې ګذار.

**زر زري**:- (ز +ر + ز + رِ + ي) [پ.ص]هغه څوک چې ډېر په تلواروي. جلتباز.

**زر زري**:- (ز+ر+ز+ر+ي) [پ.ص]ډېر قیمتي. هغه جامې چې د زروکار پرې شوے وي. لکه کیمخواب وغېره. زر بفت.

**زرزے**:- (ز+ ر+ زے) و ـــــ زرځے

**زرِ سارا**:- (زر+ سا + را ) [ف تر.اِس.جنس]خالص (سرهٔ) زر.

**زرِ سرخ**:- (زر+ س+ ر+ خ) [فاتر. اس جنس]سرهٔ زر. سونا.

**زرِ سفید**:- (ز+ ر+ س+ في+ د) [فاتر.اِس ص.مذ]سپین زر. چاندي.

**زر شناس**:-(زر+ش+نا+س) [فاتر.اِس ص.مذ]زر پیژندونکے.د کره کوټه معلومونکے. صراف.

**زرشوی**:-(ز+ ر + شو + ئ) [اس.]د زرو د وینځلو کار. د شګونه په وینځلو او صفا کولو سره د زرو د راوښکلو کار.

**زرشوئے**:- (ز+ر+شو+ ئے) [اِس.مذ]زر وینځونکے. د شګې په وینځلو صفا کولو سره د زرو ذرې رااوښکونکے.

پـه تـور کوهٔ کښې پټه رنګینه معني اوګوره
زر شویوئے سرهٔ ذر له توره وشګودي یستلي خوشحال

**زرع**:- (ز+ر+ ع) [ع.مذ]کر. کرونده. کاشت

**زرعي**:- (زَ + ر + عِي) [ع.اِس.مؤ]و ـــــ زراعتي.

**زرغا**:- (ز +ر+ غا) [ق.ص]شین تازه. ښېرازه.

**زرغاله**:- (زَ+ر+غا+ له) [ق.اِس.مؤ.ج: زرغالے]هغه ښځه چې په نفاس کښې وي یعنی د زېږون نه پس څلوېښتۍ پورې.

**زرغون**:- (زَ + ر + غو + ن) [پ.ص.مذ.ج: زرغونهٔ. مؤ: زرغونه. ج: زرغونې] (۱) راټوکېدلے.پېدا (۲) شین رنګ. زیړ بخن شین رنګ. نیله شنا. کبود.

پـه خـاطـر مې د غـم ونـه ازغونه شي
چې په پښتو زرغونې کوښې سنګاري که حافظ

**ـــــ کېدل**:- اِص.شین کېدل. (له زمکې) پېدا کېدل. زرغونېدل.

زرغـونـه کانـدي دانه زما د عېش
چې په زړهٔ مې زرغون خیال شي د اشنا رحمٰن بابا

**زرغونتوب**:- (زَ + ر + غو + ن + تو + ب) [پ.ص.مذ]زرغونتیا. زر غونوالے. شین والے. ښیرازي.

**زرغونتیا**:- (زَر + غو + ن + ت + یا) [پ.ص.مؤ]و ـــــ زرغونتوب.

**زرغون ګلے**:- (زَ + ر + غو + ن + ګ + لے) [ق.اِس.مذ.ج: زرغون ګلي] یو قسم بوټے دے چې ګل ئې د ابي رنګ وي او د غنمو په فصل کښې راټوکېږي.

**زرغون مازو**:-(زَ+ ر + غو + ن + ما + زو) [ق.اِس.مذ]د بلوط د قسم د ونې مېوه چې د دوای په طور استعمالېږي او دَ جامو رنګولو پکار هم راځي.

**زرغونوالے**:-(زَ + ر + غو + ن + وا + لے) [پ.ص.مذ]و ـــــ زر غونتوب.

**زرغونول**:- (زَ + ر + غو + ن + ؤ + ل ) [پ.مص مت](۱) شین کول. شین رنګ ورکول. (۲) راپېدا کول. ښېرازه کول.

زرغـونـه کادنې دانه زما د عېش
چې په زړهٔ مې زرغون خیال شي د اشٰنا رحمٰن بابا

**زرغونونګ**:- (زَ + ر + غو + ن + وَ + ن + ګ) [ق.حمص]و ـــــ زرغونونه

**زرغونونه**:-(زَ + ر + غو + ن + ؤ + نَه) [پ.حمص](۱) شين کونه. شين رنګ ورکونه.(۲) پېدا کونه. ښېرازه کونه.

**زرغونوونکے**:- (زَ + ر + غو + ن + وو + ن + کے) [پ.فاع.مذج: زرغونوونکي. مؤ: زرغونوونکې](۱) شين کوونکے. شين رنګ ورکوونکے. (۲) راټوکوونکے. پېدا کوونکے. ښېرازه کوونکے.

**زرغوني**:- (زر + غو + ني) [فا. اِس.مؤ]د زرغوني مرکب دے.د يوې مرکبې دواى نوم. چې د ګردو او د ملا د قوت د پاره استعمالېږي.

**زرغونېدل**:-(زَ+ر+غو+نې+د+ل) [پ.مص لا](۱) شين کېدل. شين رنګ اخستل. (۲) راپېدا کېدل. ښېرازه کېدل.(۳) بختور کېدل. بخت اقبال موندل.

دربغه نخل د عشق نۀ وے زرغون شوے

چې لــــه ښــاخــه ئې د غم ثمر پېدا شۀ رحمٰن بابا

**زرغونېدنګ**:-(زَ+ ر+ غو + ني + دَ + ن + ګ) [ق.حمص]و ـــــ زرغونېدنه.

**زرغونېدنه**:-(ز+ر+غو+ني+د+نَه) [پ.حمص](۱) شين کېدنه. شين رنګ اخېسته. (۲) پېدا کېدنه. ښېرازه کېدنه. (۳) بختور کېدنه. بخت اقبال موندنه. زرغونېدۀ. زر غونېدنګ.

**زرغونېدونکے**:-(زَ+ر+غو+ني+دو+ن+کے)[پ.مف.مذ.ج: زرغونېدونکي. مؤ: زرغونېدونکې](۱)شين کېدونکے. شين رنګ اخستونکے.
(۲) راټوکېدونکے. ښېرازه کېدونکے. (۳) بخت اقبال موندونکے.

**زرغونېدۀ**:- (زَ + ر + غو + ني + دۀ) [پ.حمص]و ـــــ زرغونېدنه.

**زرغونيز**:- (زَ + ر + غو + ني + ز) [پ.اِس.مذ]شينوالے. شنيېزه. سبزه.

**زرغه**:- (زَ + ر+ غه) [ق.اِس.مؤ]سستي. ناراستي. تردد. تذبذب.

ذرغــــه نــــامـــــرد کالــــه کاره پاتې

مرد ټول اختيار وي په زيست روزګار کښې خوشحال

**ـــــ کول**:- اِص.سستي کول. ناراستي کول. تردد کول.

**زرفشان**:- (زر + فَ + شا + ن) [فاتر.اِس ص.مذ]و ـــــ زرافشان.

**زرفشاني**:- (زر+ فَ+ شا+نِي) [فاتر. اِس.مؤ]و ـــــ زرافشاني.

**زرق**:- (زَ + ر + ق) [ع.مذ]مکر. دروغ. درغلي. منافقت.

**زرقا**:- (زَ + ر + قا) [ع.اِس.مؤ.ج: زرقاګانې](۱) د شنو سترګو والا ښځه. شين سترګې ښځه. پيشو سترګې. ګربه چشمه. (۲) په دې نوم پخوا يوه ښځه تېره شوې ده چې ډېره تيز نظره او هوښياره وه د مثال په طور راوړے شي.

**زرق برق**:-(زَ + ر + ق + بَ + ر + ق) [ف. تر]ځلا. ځلق. ځلقېدنه. پړق پړوق.

**زرک**:- (ز + ر + ک) [پ.اِس.مذ]زرکه رکه په غوشے ورکه (متل)

**زرکاڼے**:-(زَ + ر + کا + ن + ړے) [پ.اِس.ؤ.مذ.ج: زرکاڼي]هغه کاڼے چې زر پرې مبنلے شي او کره کوټه معلومولے شي. کسوټي. زرګر کاڼے.

**زرکش**:-( زر+ک+ ش) [فاتر. مذ. مؤ: زرکشه. ج: کشې](۱) د سپينو او سرو زرو نري تارونه جوړوونکے.(۲) هغه کپړه چې د سرو او سپينو زرو تارونو کار پرې شوے وي. زرکار.

**زرکوړے**:- (ز+ر+ کو+ړے) [پ.اِس. تصغير. مذ.ج: زرکوړي]د زرکې بچے. - زرکوړے.

**زرکه**:- (ز + ر + که) [پ.اِس.مؤ.ج: زرکې]مذکر زرک هم استعمالېږي. يو مارغۀ چې چال ئې ډېر مشهور دے. چکور. د غټ تنځري د قسم يو مارغۀ.

**زرکيره**:-(زَ+ر+ کي+رَه) [ق.اِس.مؤ]يو قسم شين تريخ بوټے چې د غنمو او اوربشو په فصل کښې پېدا کېږي. د نزلے (زکام) د علاج د پاره استعمالېږي.

**زرګر**:- (زَ+ ر ګ + ر) [فا.اِس ص.مذ.ج: زرګران. مؤ: زرګره.ج: زرګرے] زرپښ. هغه کاريغر چه د سرو او سپينو زرو کالی (ګاڼه) جوړوی.

په جوهر ستا جوهري بويه چې پوه شي

دغه شناخت کله ممکن دے له زرګره سعيد

**ـــــ ګاڼه**:- اِص.و ـــــ زر کاڼے.

**زرګرايه**:- (ز + ر + ګ + را + يَه) [پ.ص]زرګونه. زر چنده. هزار چنده.

**زرګردان**:-(ز+ر+ګ+ر+دا+ ن) [ق.اِس.مذ]يو قسم دے چې په نمجنه زمکه کښې پېدا کېږي او تخم ئې زهر قاتل دے. ځني خلق ئې ميده تخم په نزله او زکام کښې د نسوارو په ډول استعمالوي.

**زرګري**:-(ز+ر+ګ+رِي) [فا.اِس.مؤ] د زرګر پېشه. د سرو او سپينو زرو د کالو جوړولو کار.

**ـــــ جنګ**:- اِص.د دوکې جنګ. بل ته د ښودنې دپاره مصنوعي جنګ.

**زرګري ژبه**:- اص.د زرګرانو خپله جوړه کړې پټه ژبه چې بل څوک پرې نۀ پوهېږي.

**زرګوړے**:- (ز+ ر+ګو+ړے) [ق.اِس.مذ.ج: زرګوړي]و ـــــ زر ګوړے.

**زرګنډے**:- (ز+ ر+ ګ+ ن + ډے) [ق.اِس.مذ]و ـــــ زر دوز.

**زرګونه**:- (ز +ر+ ګو+ ن+ه ) [اس.امذ.مؤ]ډېرځله زر + زرها .

**په زرګونه/زرګونو**:- زرها . چه شمارئې په زرګو نو کولے شي. بې شماره ډېر زيات.

**زرګوني**:- (زر + ګو + نی) [پ.اِس.مؤ]و ـــــ زرغوني.

**زرګه**:- (ز+ر+ ګۀ) [ق.اِس.مؤ]يو قسم بوټے دے چه فرغند هم ورته وائي. پېروته.

**زرګير**:-(ز+ر+ ګِي+ر) [ق.اِس.مذ](۱) د څرمنې جوړ ګوتمو (ګوټمی) چې لينده ور يا زرګنډے ئې په خپله ګوته خېژوي.(۲) د زورګير مخفف. ظالم . جبر کوونکے.

**زرل**:- (ز+ر+ل) [ق.مص مت]زر ورباندې خېژول. طمع کول. د زرو اوبۀ ورکول.

**زرل**:- (ز+ر+ل) [پ.مص مت]تکليف رسوول. ازار رسوول.

**زربښته**:- (زر + لَ + خ / ش + تَ) [پ تر.اس ص.مؤ]د زر و ښته.

**زرلګ**:- (ز+ ر+ لَ+ ګ) [ق.اِس.مذ] جرلګ. يو قسم خړ رنګے ازغن بوټے چې په قندهار کښې ډېر زيات پېدا کېږي.

**زرم**:- (زَ + ر + م) [ع.مذ]پرهيز. ويره.

**زرم**:- (ز + رَ + م) [اس.مذ.مؤ: زرمه.ج: زرمې](۱) په زرو کښې يوه برخه (۲) هغه سړے يا څيز چې ۹۹۹ څيزونو يا سړونه وروستو راځي يا سړونه وروستو راځي.

**زرمشر**:-(زر+م+ش+ر) [پ.اِس ص. مذ]د زرو کسانو مشر. په (افغاني) فوج کښې يوه عهده.

**زرِنا خني**:-(زر+نا+خ+ني) [ف تر. اِس جنس]بې حده ډېر خالص سرۀ زر چې په نوک سره پرې نشان جوړېږي.

**زرنب**:-(زر+ن+ب) [ع.اِس]د يو خوشبودار بوټي نوم چې (پاڼې ئې) په دارو کښې استعمالېږي.

**زرنبا**:-(زر+ن+با) [ف.اِس]زرنباد هم ورته وائي يو خوشبو داره جرړه چې په دارو کښې استعمالېږي.په انګريزی کښې ورته د چينيانوجړه وائي. کپور کچري.

**زرنباد**:- (زَ + ر + م + با + د) [ع.اِس.اس جنس]د يوے دواى نوم چې په اردو هندی کښې ورته نرکچور وائي.

**زرنج**:- (زَ + ر + ن + ج) [پ (ظفر). اِس. معرفه]د يو پخواني ښهر نوم.

**زرنځه**:- (ز + رَ + ن +ځ+ ه) [پ (ظفر).اِس.مؤ](۱) بدبويه خټه. سخا چيکړ. زرنه.

(۲) زر تارپين تبل. (۳) ختېبل.

**زرنځي**:- (ز + ر + ن + ځ + ي) [ق.اس.مؤ](۱) توره بد بويه خته. زرنۀ. تاركول. (۲) توره زوه.

**زرنـدګړے**:- (ز + رَ + ن + د + ګ + ړَے) [پ.اس ص.مذ. زرنـدګړی‌مؤ: زرنـده ګړې]ژندر ګړے. ژرنده ګړے.

**زرنده**:- .ذ + رَ + ن + دَ + ه) [پ.اس.مؤ.ج: زرندے]ژرنده. ژندره.

**زرندۍ**:-(ز+ر+ن +د+ۍ) [ق.اس.مؤ]بوره بورا. هغه زمکه چې کر پرې نۀ وي شوے

**زرڼ**:- (زَ + ر +ن+ ړَ) [پ.اس.مذ]زرنځي. زرڼه.

**زرڼا**:- (زَ + ر + ن + ړا ) [پ(ب،خ).اس.مذ]د غنمو يوه بيماري. هر کله چې غنم وږي راوباسي نو دا بيماري پر لګي چې د هغې سره ئې وږي وركوټي پاتې شي او دانه په کښې ډېره کمه وي.

**زرڼه**:-(ز+ر+ن + ړِ + ه) [پ.اس.ج]د صنوبر د ونې چېړ. نتخره. زرنه. رنخرۀ.

**زرڼه**:- (زَ + ر + ن + ړ + ه) [پ.اس.مؤ] له. د تالاؤ په تل کښې نرمه. خته.

**زرڼې**:- (ز + ر + ن + ړې) [ق.اس]توره بدبويه خته. ذرنې.

**زرڼې**:- (زَ + رَ + ن + ړ + ي) [ق.اس.مذ.ج: زرڼي](۱) جذام وهلے. (۲) بې خبر

**زَرَنګ**:- (زَ + رَ + ن + ګ) [ف.اس](۱) زيړلرګے. (۲) د لسم ګل. (۳) زيړه خاوره چې ديوالو نه پرې رنګولے شي.

**زرنګ**:-(ز+رَ+ن+ګ)[پ(ظفر).ص.مذ](۱)مضبوط. توانا. (۲) چالاک. هوښيار.

**زرنګار**:- (زَ + ر + ن + ګا +ر ) [فا.ص.مذ]په زور نقش شوے. چې سرۀ زر پرې لګېدلي وي.

**زرنه**:- (ز + رَ + نَه) [ق.اس.مؤ.ج:زرنے]او ـــــ زرڼه.

**زرنه**:- (ز + ر + نَه)[ق.اس.]او ـــــ زرنے.

**زرني**:-(ز+ر+ ني) [اس.مذ.مو: زرمنی. اخارنه. جاسوسي. په ځير ځير کتنه.

**زرني**:- (ز +ر+ني) [ق.مؤ]خارنه. په ځير ځير کتنه. جاسوسي.

ـــــ **کول**:- اص،خارل. په ځير ځير کتل. خارنه کول. جاسوسي کول.

**زرنے**:- (ز + ر + نے) [پ.اس.مذ]او ـــــ زرنې.

**زرنے**:-(زَ+ ر +نَے) [ق.اس.مذج: زرنې]څرے. خارونکے. جاسوس. سکاؤټ.

**زرنيخ**:- (زر + نې + خ) [ف.اس](۱) هړتال. يو قسم سنکيا. ددې دوه قسمه وي. زيړرنګے چې ورته زرنيخ اصغر يا زرد وائي او سور رنګے چې ورته زرنيخ احمر يا قرمزوائي. (۲) د سکے چرې چې په ټوپک کښې اچولے شي. او ښکار پرې کولے شي . ساچمه.

زما په تامه زر شول د بې بې په ذات زرنيخ شول
زرنيخ پـه نـرخ د زرو کا قـدت لـوئي آله — خوشحال

**زرنيق**:- (زر + نی + ق) [ع.اس.مذ]او ـــــ زرنيخ

**زرو**:- (زَ + رو) [ف.اس.مؤ]ژوره. جوره.

**زرو**:- (ز + رو) [پ.اس.ج]د زرجمع. ډېر زره.

**زروالے**:- (ز + ر + وا + لَے) [پ.ص.مذ]تېزي. جلتي.

**زره**:- (ز + رَ + ه)[ف.اس.مو.ج: زرې]زغره د فولادو د وړو وړو ټکړو (حلقو) نه جوړ شوے قميص ګوټے چې د جنګ په موقع د توري نيزې د ګوزار نه د بچ کېدو د پاره اغوستے شي.

ـــــ **باف**:- (زره+با+ف) هغه د اوسپنې کار کونکے چې زغرې جوړوي. زغرې سازوونکے زغره ساز.

ـــــ **پوش/ پوښ**:- اص، هغه لښکريان چې زرهې (زغرې) ئې اغوستې وي. په زغره پټ.

ـــــ **موټر**:- اص.ارمرد کار.

ـــــ **دار**:- اص.زغره لرونکے.

ـــــ **ساز**:- (زره + سا + ز) او ـــــ زره باف]

**زرها**:- (ز + ر + ها) [پ.اس]په زرګونو. ډېر زره.

**زرۍ**:- (ز + رَ + ۍ) [ق.اس.مؤ]توښه. خوراکه. څوري.

**زرياي**:- (زَ + ری) [فا.ص](۱) د سرو زرو نه جوړ(۲) چې د سرو يا سپينو زرو د تارونو کار په کښې شوے وي (ټوکے کپړه وغېره)(۳) ملمع شوے.

**زري**:- (ز + ر + ي) [ق.اس.مذ]د مرۍ د بيمارۍ يو قسم چې په زکام کښې د بدپرهيزۍ په وجه پېدا کېږي.

**زرے**:- (زَ + رَ + ے) [ق.اس.مذ]هوښيار. پوهه.

**زرے**:(ز+رے)[ق.اس.مذ.ج:زري](۱)جاسوس. څارونکے.(۲)دټوپک ديدبان. و ـــــ څرے.

**زريځ**:- (زَ + ری + ځ) [پ.ص] زرين. زرے.

ـــــ **ځبله**:- (ز + زرے + ز + ب + له) [ق.مذ]د شراکت نفع.

**زريړه**:- (ز + ر + ي + ړ + ه) [ق.اس.مؤ]يو قسم غرئيز بوټے دے چه ګړدے دانے لري او خړ رنګ ئے وی.

**زريز**:- (ز+ري+ز) [پ.ص]چې زرو (شمير) سره تعلق لري.لس زريز. د لسو زرو (نوټ وغېره)

**زريـز**:- (ز+ری + ز) [پ.ص]زرو سـره تعلـق لـرونکے. د زرو. (زر سـره چې د "سپين" لفظ نه وي نو عموماً سرۀ زر مراد وي)

**زريږ**:- (زَ + ر + ي + ږ) [ق.اس.مذ]ژبې. د مرۍ يوه بيماري.

**زري زرګه**:- (ز + ر + ي + زَ + ر + که) [ق.اس ص. مؤ]د زرو په شان پرونووالـه زرکه. زرينه زرکه.

**زرې زرې**:- (ز + رې + ز + رې) [پ.ص.مؤ.ج]ټوټې ټوټې

ـــــ **کول**:- اص ټوټې ټوټې کول. ټکړې ټکړې کول.

ـــــ **کېدل**:- اص.ټوټې ټوټې کېدل. ټکړې ټکړې کېدل.

**زريلګ**:- (ز+ر+ي+ ل+ګ) [ق.اس.مذ]او ـــــ زرلګ.

**زرين**:- (ز+ري+ن) [ف.صف.مو: زرينه.ج: زرينې](۱) د زرونه جوړ (۲) د زرو په شان رنګ لرونکے. د سرو زرو په رنګ. (۳) چې د سرو زرو کار پرې شوے وي. (۴) چې د زرو د تارونو کار پرې شوے وي-زری. (متل) که پښې زرينې وي خو په سر ئې څوک نۀ کښېږدي.

توراکے اور بل ئې جال خال ئې کونتره
کته بـازو بـادنې نښـلي زرين بـاله — حافظ

متل: که پښې ذرينې وي خو په سر ئې څوک نۀ کښېږدي

ـــــ **بال**:- اص.زرينو وزرو والا. د زرو په شان رنګ لرونکي-وزرو والا.

دودد دورات دانـــا مقـــدور کـه د نادانو
مات که په بېګارو بازنيک ذاته زرين بالا — حافظ

ـــــ **پوش**:- اص.(ف تر. صف. مذ. مؤ زرين پوشه. ج. زرين پوشې) چې زرينې جامې ئې اغوستے وي يعني هغه جامې ئې اغوستې وي چې د زرو د تارونو کار په کښې شوے وي.

ـــــ **کاسه**:- (ف پ .واسم مو.ج: زرينې کاسې)(۱) (د سرو) زرو جوړه کاسه د سرو زرو جام. (۲) مجازاً. د نمر سترګه.

**زرين ګياه**:- (زرين + ګَ + يا + ه) [ف.تر.مؤ]د ونبو يو قسم چې په دوائيانو کښې استعمالېږي.

ـــــ **مرغ**:- (زرين+م+ر+غ) [ف تر.اس.مذ](۱) مرغ زرين. يو ښکلے مارغۀ چې عموماً په يخو ملکونو کښې موندے شي. (۲) مجازاً. د نمر سترګه (په پښتو کښې ډېر کم استعمالېږي)

**زرينه**:- (زَ + ري + نَه) [صف. مو.مذ: زرين]د زرين مؤنث.ج: زرينې (۱) وګوره. زرين. (۲) د زنانو يو عام نوم.

**زړامبو**:- (ز+ړا+م+ بو) [ق.مص]زړان. څوړند. ځړېدلے.

**زړامبوی**:- (ز + ړا + م + بو + ئ) [ق.مذ]د زړوکي بوئ. درنجے بوئ.

**زړان**:- (ز+ړا+ن) [ق.مذ]و ـــــ زړامبو.

**زړانکه**:-(ز+ړا +ن+کهٔ) و ـــــ زیړانکه]

**زړپ**:- (ز+ړ + پ) [ق.اس.مذ]نرگس. یو خوشبو داره گل.

**زړتوب**:- (ز +ړ+ت+ وب) [پ.اس.مذ]زړتیا. زوړوالے. بوډاتوب.

ژوند په حوانۍ ډ ټول گلونو نه جوړ

ژونـــد پـــه زړتوب توره بلا راغله صادق

**زړتیا**:- (زَ + ړ + ت + یا) [پ.اس.مؤ]و ـــــ زړتوب.

**زړخن**:-(زَ + ړ + خ + ن) [ق.ص]ډېر وخت تېرېدو په وجه د غوړو سخا بوئ.

**زړ خنتوب**:-(ز+ړ+خ+ ن + تو + ب) [ق.اس.مذ]زړخنوالے. د غوړو سخا کېدل.

**زړخنوالے**:- (ز+ړ+ خ + ن + وا + لے) [ق.اس.مذ]و. زړ خنتوب.

**زړخنول**:-(ز+ړ+خ+ن+و+ل) [ق.مص مت]ډېره موده ایښودو په وجه گوړي یا تېل وغېره سخا کول.

**زړخنونگ**:- (ز + ړ + خ + ن + وَ + ن + گ) [ق.حمص]و ـــــ زړخنونه.

**زړخنونـه**:- (ز+ړ+خ+ن+و+ن+ ه) [ق.حمص]غـوړي ډېـره مـوده ایښـودونه چې خوند او بوئ ئې بدل شي.

**زړخنېدل**:-(ز+ړ+خ + نې + د + ل) [ق.مص لا]ډېره موده تېرېدو په وجه د غوړو یا تېلو وغېره بدبویه او سخا کېدل.

**زړخنېدنگ**:- (ز + ړ + خ + نې + دَ + ن + گ) [ق.حمص]و ـــــ زړ خنېدنه

**زړخنېدنه**:- (ز + ړ + خ + نې + د + نَه) [ق.حمص]د ډېره موده تېرېدو په وجه د غوړو یا تېلو وغېره بدبو یه کېدنه. زړخنېدۀ. زړ خنېدنگ.

**زړخنېدونکے**:-ز+ړ+خ+ نے + دو + ن + کَے) [ق.مف.مذ.ج: زړخنېدونکی. مؤ: زړ خنېدونکې] د ډېره مده تېرېدو په وجه بدبو یـه کېدونکے غوړي یا تېل وغېره.

**زړخنېدۀ**:- (ز + ړ + خ + نې + دۀ) [ق.حمص]و ـــــ زړ خنېدنه

**زړخوږے**:- (ز + ړ + خو + گے) [پ.اس.مذ]په زړۀ خوږ. ویشتلے. زخمي. ژوبل.

**زړداوه**:- (زَ+ړ+دا + وه) [ق.اس.مؤ]د سپیلنو د قسم یو بوټے چې زېړ گلونه لري.

**زړښت**:- (ز+ړ+ ش/خ + ت) [پ.اس.مذ](۱) زوړ والے. زوړتیا. بوډا توب (۲) لـر غوني. لرغون والے. وروستوالے.

**زړغی**:- (ز + ړ + غَ + ئ) [ق.اس.مؤ]تردد. تذبذب. دوه توب.

**زړغے**:- (ز +ړ+ غے) [ق.اس.مذ](۱) دوه زړے. مـتردد. (۲) د ډېـرې بیمـارۍ نـه پس د مریض څۀ خوراک ته زړۀ کېدنه.

**زړگوټے**:-(زَ+ړ+گو+ټے) [ق.اس.مذ.ج.زړگوټي]زړوکے.د کېږے زړه ټکړه.

**زړگوټے**:- (زَ + ړ + گو + ټے) [پ.اس تصغیر. مذ.ج. زړگوټي]وړوکے شان زړۀ. د زړۀ اسم تصغیر.

در څۀ روښې نۀ دي چې بهېږدي له چشمانو

ویني دي بهـــېږي د زړگـــوټي لـــه پرهاره رحمٰن بابا

**د زړگوټي پرهار**:- اص.د زړۀ زخم.

**زړگے**:- (ز+ړ+ گے) [پ.اس.مذ.ج. زړگي](۱) زړگوټے. وړوکے زړۀ. (۲) د مینـې پـه طور د زوي یا محبوب د پاره استعمالېږي.

خـدایـــه څـۀ دے یـــو باد وړے زړگے راکړ

چې همېش د عشق د بار په مخ کښې درومي خوشحال

**ـــــ فارغ کېدل**:- اص، زړۀ ته تسلي کېدل. د زړۀ نه غم او پریشاني لرے کېدل.

تـــاتـــه راشمه زړگے زما فارغ شي

بې له تا مې اندېښنې د زړۀ مارونه احمد شاه ابدالي

**ـــــ قرارېدل**:- اص، زړۀ په ارام کېدل. زړۀ ته تسلي کېدل.

**ـــــ یخېدل**:- اص.زړۀ ته ارام او سکون رسېدل.

په بل رنگ به مې ذړگے باندې یخ نۀ شي

رقیبان شـــو د نـــوکـــونو تر مېنځ سپړې خوشحال

**په زړگي**:- اص.په زړۀ باندے. زړگی د پاسه.

**دَ زړگي یخېدل**:- اص.زړۀ ته دړد رسېدل.

**د زړگي حال**:- اص.د زړۀ حال. د زړۀ خبرے د راز خبرے.

قدردان او تنگیالي شوخاورو لاندې

څـۀ بـــه حـال د زړگي وایم گاڼ خرته عظیم

**د زړگي ستن نړېدل**:- اص.زړۀ ته ډېر تکلیف رسېدل.

سمندر خان مومون خان دواړه شهیدان شول

احمـــد شـــاه د زړگي ستن اونـړېـدلـه برهان خان

**د زړگي سر**: اص .د زړۀ سر. محبوب

**د زړگي سر پرېکول**:- اص.د زړۀ سر پرېکول.

**د زړگي شمع**:- اص.د زړۀ شمع. د زړۀ باتی.

د عشق اور مې وبلوي د زړگي شمع

بېهوده مې پر موم نقش رنگین ږدي پیر محمد کاکړ

**د زړگي غوټـه واکـول**:- اص.د زړۀ غوټـه پرانسـتل. د زړۀ حـال وئیـل. د راز خبره ښکاره کول.

هیڅوک نۀ لرم چې راز ورته اووایم

بې له تا د زغري غـوټه مې راواکړه عبدالرحیم هوتک

**د زړگي غوښې خوړول**:- اص.د زړۀ غوښې خوراک تـه ورکـول. خپـل ډېر د مینې څیز چاته ورکول.

چې مې تل د زړگي غوښې خوري عالمه

د خپل یـار ښلتون همېش راتـه ولاړ شو جان محمد

**د ذړگي غوښې خوړل**:- اص.د زړۀ غوښې خوړل. چاته ډېر تکلیف رسوول.

**د زړگي قرار**:- اص.زړۀ ته ارام او سکون رسېدل.

دا چـــا وئـیـــلــي نـــۀ دي

چې په جدائې زړگے قرار د ے احمد شاه ابدالي

**د زړگي مینه ماتول**:- اص.د زړۀ مینه ماتول. د زړۀ ارمان پوره کول.

**د زړگي ولي پرېکول**:-اص.زړۀ ته ډېر تکلیف رَسوول. زهیرول.

**د زړگي ولي پرېکېدل**:. اص، په تکلیف کښې گېرېدل. څۀ اسره نۀ پاتے کېدل.

**د زړگي ولي رېبل**:-اص.زړۀ ته تلیف رسوول. زړۀ د کاره ایستل.

**د زړگي ولي غوڅول**:- اص.و ـــــ د زړگي ولي رېبل.

**مست زړگے**:- اص.مست زړۀ. هواگیر زړۀ.

مست زړگے دغه دا رنگه اوچت شي

لـکـــه پـورتـه سر کړي گل د ادېړې غني خان

**زړن**:- (ز + ړ + ن) [پ.ص.مذ.مؤ: زړنه]زړۀ ور. بهادر. تورزن.

رېږي زړن راځخه له ما اتل نشته (امیر کروړ)

**زړند**:-(ز+ړَ+ن+د)[پ.ص.مذ.مؤ:زړنده](۱)زوړند.ځوړند.اوېزان.(۲) ملتوي.

**زړَندول**:-(ز+ړ+ن+دَ+و+ل)[پ.مص مت]زوړندول. اومېبزاندول. ځوړندول.

**زړندېدل**:- (ز+ړ+ن+دي+د+ل) [پ.مص لا]زوړندېدل. اوېزانېدل. ځوړندېدل.

**زړوالے**:-(ز+ړ+وا+ لے) [پ.اس.مذ](۱) بوډ اتوب. زوړوالے. (۲) وروستوالے.

زړ والي تـــه اشنا تۀ په ځوانۍ تیاري اوکړه

گرمیانو کښې اشنا ځان ته شاړیانې جوړوه صادق

**زړوړمه**:- (ز + ړو + گ/ژ + مه) [ق.ص.مؤ]زړومبه. بدبویه. سخا.

**زړوکے**:- (زَ + ړ + و + کَے) [پ.اس.مذ.ج: زړوکي]جامه. کېږه

**زړومبه**:- (ز + ړو + م + بَه) [ق.ص.مؤ]و ـــــ زړوړ مه.

**زړول**:- (زَ+ړ+و+ل) [اِپ.مص مت] (۱) څۀ څیز تر ډېرې مودې پہ استعمال کښې راوستل. (۲) بوډا کول.

**زړونه**:- (زَ+ړ+ؤ+نه) [اِپ.حمص]و ـــ زړول.

**زړوونکے**:- (زَ+ړ+وو+ن+کَے) [اِپ.فاع.مذ.ج: زړوونکي. مؤ: زړوونکې] (۱) تر ډېرې مودې استعمالوونکے. (۲) بوډا کوونکے.

**زړۀ**:- (ز+ړ+ه) [اِپ.اس.مذ.ج: زړونه] (۱) خاطر. قلب (۲) ضمیر. (۳) خوښه. (۴) خواهش. (۵) همت. جرات.

ستا لـه کـوُيه بـه ولاړ نۀ شم که شړې مې
چې دې زړۀ هسې جفا کړه اوس دې خپل یم — خوشحال

**ـــ اَچول**:- اِص.نا اخمید کېدل. مایوسه کېدل. همت بائلل.

**ـــ اخیستل**:- اِص.ناراضه کېدل.

**ـــ اړېدل**:- اِص.زړۀ بندېدل. غمژن کېدل.

**ـــ آزارېدل**:- اِص.زړۀ ته درد رسېدل. تکلیف رسېدل. تکلیف رسېدل.

چې د ورور اود عزیز پرې زړۀ ازار شي
حاصل مـــه شــه هغه خپـله مـدٌعا — رحمٰن بابا

**ـــ افګار**:- اِص.زړۀ چاودے. دردېدلے.

فرقدینو نۀ کړم خلاص د غم له دینه
زړۀ افـګار پـــه فراقت دیده ګریانه — حافظ

**ـــ اوراخیستل**:- اِص.(۱) د ګرمۍ د لاسه داسې حالت کېدل چې څۀ سوړشی خوړو ته زړۀ کېږي. (۲) ډېر تږے کېدل.'

**ـــ ایستل**:- اِص.ډېر ویرول. زړۀ ښویول.

**ـــ ایښودل (په چا)**:- اِص.اَسره کول.

**ـــ بائلل/ بئېلل**:- اِص.(۱) زړۀ د قـابو نـه وتـل. زړۀ بې قـابو کېـدل. (۲) عاشق کېدل. مئینېدل.

**ـــ بد (دے)**:- اِص.زړۀ خفه دے. ناراضۀ دے.

**ـــ بداوے**:- اِص.خفګان. مخالفت

**ـــ بدوالا**:- اِص.مخالفت.دښمني۔

**ـــ بدول**:- اِص.خفه کېدل. ناراضه کېدل.

**ـــ بندول**:- اِص.زړۀ په قابو کښې کول.

چې یو ځله زړۀ د چا په مینه بند کړې
پـــه شلــه ؤل ځنې کمې د مروت ده — خوشحال

**ـــ بندي کول**:- اِص.د چا زړۀ په قابو کښې کول.

**ـــ بیا موندل**:- اِص.جرات پیدا کېدل. زړۀ ورکېدل.

پـه طالـب احمـد دیـن زړۀ غمـاز و بیـا مونـد
چــې خپــل یــار ورسـره کــړي خبــر نــواړې

**ـــ پاڅه وونکے**:- اِص.زړۀ را اوچتوونکے. څۀ څیز تـه مائـل کـوونکے. زړۀ راپورته کوونکے.

**ـــ پاره کېدل**:- اِص.زړۀ چاؤدل. زړۀ ماتېدل.

د خـاطـر عــلاج مې ذرا اوکړه طبیبه!
چې مې زړۀ پاره د خداے د پاره نۀ شي — خوشحال

**ـــ پخول**:- اِص.ځیګرخون کول. ډېر درد تکلیف رسول.

**ـــ پخېدل**:- اِص.ځیګر خون کېدل. ډېر درد او تکلیف نه تنګ راتلل.

**ـــ پرتورې تکۍ کېدل**:- اِص.د چا په بد حال باندې زړۀ دردېدل.

**ـــ پرکښېنستل**:- اِص.د څۀ کار شوق لرل. په څۀ خبره زړۀ راتلل.

**ـــ پـرے سـړول**:- اِص.(۱) زړۀ یخـول. زړۀ تسـله کېـدل. (۲) بـدل اخېسـتل. (۳) کامیابه کېدل. خپل مقصد حاصلول.

**ـــ پرے کښېنستل**:- اِص.خفه کېدل. پریشانه کېدل.

**ـــ پرې کول**:- اِص.ځان بېلول. تعلق نۀ ساتل.

چې له خلقو نه زړۀ پرې کړه
زړۀ پېـــونـــد کړه له الله! — خوشحال

**ـــ پربوتل**:- اِص.مایوسه کېدل.

**ـــ پورته کول**:- اِص.(۱) د چا سره تعلق پرېښودل. دلچسپي نۀ لرل. (۳) زړۀ خوشحالول.

**ـــ پورته کېدل**:- اِص.(۱) دلچسپي یا مینه نۀ پاتے کېدل. تعلق کمېدل. (۲) خوشحاله کېدل. (۳) باکې راتلل.

**ـــ ښتل (پورې)**:- اِص.(۱) د څۀ سره دلچسپي پیدا کېدل. (۲) باور پرې راتلل. (۳) مینه لرل.

**ـــ پورې منښلول**:- اِص.دلچسپي لرل. باور کول.

**په زړۀ پوهېدل**:- اِص.یو بل د زړۀ په حال خبرېدل.

**په زړۀ پوهېږي**:- یو دوست د بل دوست د زړۀ د حال خبر دي. د زړو نو سره لار وي

**ـــ په مینه بندول**:- اِص.د چا په مینه اخته کېدل. د چا سره د زړه مینه کول.

چې یو ځله زړۀ د چا په مینه بند کړې
پـــه شلـــول ځنې کمې د مـروت ده — خوشحال

**ـــ په ننوتل**:- اِص.زړۀ په ځاے راتلل. د چانه ویره لرے کېدل. زړۀ ورکېدل.

**زړۀ پیت پیت کول**:- (د چا):- اِص.په زړۀ کښې ویره محسوسول.

**ـــ پېوندول**:- اِص.زړۀ تړل. تعلق جوړول.

چې له خلقه نه زړۀ پرې کړه
زړۀ پېـــونـــد کـــړه لـــه الله — خوشحال

**ـــ تر ستر ګو راتوئېدل**:- اِص.د زړۀ وینې د سترګو په لار تلېدل. وینې ژړل.

زړۀ تر دوؤ سترګو راتوئي شۀ! — خوشحال

**ـــ تړل**:- اِص،تعلق قائمول. په چا باور کول.

چې بې خــدایــه زړۀ ترې په نور څۀ پورې
هم په خداے هسې باور کړه چې نادان ئي — رحمٰن بابا

**ـــ تړل**:- اِص.اسره کول. اعتماد کول.

چا وویـل چې صبر بخښـه د بري ده
زۀ خوشحال پـه صبر ځکـه زړۀ تـړم

**ـــ تش پاتے کېدل**:- اِص.د زړۀ براس وتل.

**ـــ تشول**:- اِص.(۱) د زړۀ براس ایستل. په زړۀ کښې چې څۀ خبرې وي هغه ښکاره کول.(۲) ډېر زیات بدرد وئیل. ډېر زیات کنځل.

در بغه سره تش کړې دا غک زړونه د فراق
تول کړلے په تله د چا زیات شوے اشتیاق — خوشحال

**ـــ تشېدل**:- ا.ص.د زړۀ براس وتل. تسلي کېدل.

**ـــ تلل (چاپسې)**:- اِص.مینېدل. عاشق کېدل. زړۀ بائلل.

عقل هوش صر و ارام ورپاتې نۀ شي
د هر چـا چې په دلبرو پسې زړۀ ولاړ — خوشحال

**ـــ تنګ**:- اِص.(صفت) په زړۀ باند تنګ. په زړۀ کښې تنګي لرونکے. تنګدله.

دا به څۀ پوښتې چې څۀ لره زړۀ تنګ ئي
ستا د تنګې خُلې په فکر کښې ګندل یم — خوشحال

**ـــ تورول**:- اِص.(۱) ځوک څۀ څیز یا چانه وېزاره کول. (۲) ځوک چاته لمسول.

**ـــ توربدل**:- اِص.(۱) په زړۀ کښې کرکه او نفرت پیدا کېدل زړۀ تېکېدل. (۲) په زړۀ کښې خیرې راتلل. بدنیتـه کېدل. (۳) زړۀ سختېدل چې د څۀ خبرې اثر پرې نۀ کېږي.

پــه افسون او پــه جادو د تورو سترګو
خراب زړه مې له جمله عالمه تور دے — رحمٰن بابا

ـــــ **تور ټکے کېدل**:- اص.په ډېر تکليف او مشقت کښې ګېرېدل.

ـــــ **ته آچول**:- اص.(۱) څۀ (بده) خبره په زړۀ کښې يادلرل. (۲) څۀ (بده خبره) په زړۀ کښې محسوسول.

ـــــ **ته پرېباسل**:- اص.زړۀ ته درښکته کول. په زړۀ کښې ځايول.

وګړنګ وتـه په خپل ځان پرېباسي
چې و زړۀ وته پرېباسي روي د ستا رحمٰن بابا

ـــــ **ته پريوتل**:- اص.په زړۀ کښې ځاے نيول. قائله کېدل. په خبره پوهېدل. د خبرې تل ته رسېدل. څۀ خبره رښتيا او حقه محسوسېدل.

ـــــ **ته زنګنونه ورکول**:- اص.په څۀ کار کښې تکليف او زحمت برداشت کول.

ـــــ **ته (غم) آچول**:- اص.ډېر غم او فکر کول.

ـــــ **ته غورځول**:- اص. ۀ خبره په زړۀ کښې ساتل. خبره ياده لرل.

ـــــ **ته کېدل**:- اص.د څۀ څيز (د خوراک) خواهش لرل. عموماً د نفي په څېر استعمالېږي. لکه داشے مې زړۀ ته نۀ کېږي.

ـــــ **ته لوئېدل**:- اص.زړۀ ته پريوتل. يقين پرې کول.

ـــــ **ته ئې لار کېدل**:- اص.مينه پيدا کېدل. مهربانه کېدل.

ـــــ **ټکېدل**:-اص.زړۀ مړېدل. وېزاره کېدل. مجازاً نفرت او کرکه پيدا کېدل.

ـــــ **ټوټے کېدل**:- اص.زړۀ ماتېدل. ډېر غم د وجې زړۀ تـه تکليف رسېدل. زړۀ چاؤدل.

ـــــ **ټينګول**:- اص.صبر کول.

ـــــ **ټينګېدل**:- اص.صبر کېدل

ـــــ **ځنې تورېدل**:- اص.د څۀ څيز نه کرکه او نفرت پيدا کېدل.

ـــــ **چاودل**:- اص.(۱) زړۀ چـوول. دڅـۀ صدمې پـه وجـه زړۀ تـه ډېـر تکليـف رسېدل. (۲) ډېر زيار او خواري کول. (۳) مړ کېدل.

که له ډېره دردو غمه مې زړه اوچوي
ورتـــه هېڅ وي زمـا دړد و زما دوکه رحمٰن بابا

ـــــ **چوول**:- اص .و ـــــ زړۀ چاودل

د ښائست ثاني دې نيشته په عالم کښې
زړۀ مې چـوي ستـــا لـــه ډېرې استغنا خواجه محمد

ـــــ **څکېدل**:- اص.په لږ څيز صبرېدل. په لږ شي صبر کول.

ـــــ **ختل**:- اص.د چانه طمع ياڅه اميد لرل (په تـامې زړۀ خيژي ځکه مې درنه سوال اوکړۀ)

ـــــ **خولې ته راتلل**:- اص.ډېر تنګېدل. تر سپېږ موکېدل.

ـــــ **خولې ته راوستل**:- اص.څوک ډېر تنګول.

ـــــ **خوږېدل**:- اص.(۱) ډېر ويرېدل. (۲) ډېرورېے کېدل.

ـــــ **خوړل**:- اص.فکر کول. غم کول. په زړۀ کښې زهيرېدل.

ـــــ **خوږين (دے)**:- اص.زړۀ تور دے. زړۀ متنفر دے.

ـــــ **خوږينول**:- اص.زړۀ ته ډېر دړد رسوول. غمژنول.

راتـــه وائـــې نـــن زړۀ ځنګـــه ورې لـــه مانـــه
کـه دې خـوږين کـړ هـم ئـې خـوښ خوشـحال خـرم ورم

ـــــ **خوږينېدل**:- اص.زړۀ ته ډېر دړد دوک رسېدل. ډېرتنګېدل.

ـــــ **خوځېدل**:- اص.(۱) په زړۀ رَپندے راتلل. پـه زړۀ ويره راتلـل. (۲) په زړۀ ژور اثر کېدل. زړۀ لاتد باند کېدل.

د عـــالـــم ډېرې خبرې لور په لور توري لښکرې
زړۀ مې نۀ خوځي له ځايه ، غر خو هسې وي کنه خوشحال

ـــــ **خوږول (د چا)**:- اص.د چا زړۀ ته دړد رسوول. داسې کار کـول چې د بـل زړۀ ته پرې دک دړد اورسي. چاته تکليف رسو ول.

ـــــ **خوږېدل**:-اص.په څۀ خبره خوشحاله کېدل. زړۀ ته خوشحالي رسېدل.

ـــــ **خوږېدل**:- اص.(۱) زړۀ تـه تکليـف رسـېدل. غمـژن کېـدل. زړۀ تـه دړد رسېدل. (۲) د چا سره همدردي پيدا کېدل.

ـــــ **د ځوڼـو پـه الغـه کښې کښېوتل**:- اص.د چاپه زلفو کښې ګېرېدل. عاشق کېدل. مينه پيدا کېدل.

ـــــ **دربوول**:- اص.زړۀ ويرول. ولاړشه او زړۀ مه دربووه!

ـــــ **دربېدل**:- اص.زړۀ رېږدل. ويرېدل. وسواس کول.

ـــــ **درزېدل**:-اص.د ډېرې ويرې په وجه د زړۀ ټوپونه وهل. ويرې اخستل.

ـــــ **ورول**:- اص.زړۀ ورکول. همت او حوصله ورکول. ډاډه کول.

ـــــ **دړدېدل**:- اص.(و ـــــ زړۀ خوږېدل)

ـــــ **د سرې ملګرے کېدل**:- اص.ډېر ويرېدل. ويرې اخېستل. د څۀ واقعې يا خبر په اوريدو ډېر متاثره کېدل.

ـــــ **د کونې پرې وتل**:-اص.ډېر زيات ويرېدل. سخت ويرې اخېستل.

ـــــ **د ګوګلـه وکښـل**:- اص.(۱) د سينې يـا ټټرنـه زړۀ ايسـتل. ډېـر ويرېـدل. (۲) عاشق کېدل.

ـــــ **دوه دوه کول**:- اص.په دوه کښې حريانېدل. د څۀ فيصله ګرانېدل.

ـــــ **دوينو ډکېدل**:- اص.ډېر په تکليف کښې کېدل. ډېر غمژن کېدل.

ـــــ **ډاډ (دے)**:- اص.زړۀ ته تسله ده. زړۀ قلار دے

چې پـــرې زۀ نازېدم هغه عالم نيشته
په نور چا مې نۀ زړۀ ډاډ دے نۀ سړېږي حافظ

ـــــ **ډاده کول**:- اص.زړۀ ته تسلي ورکول. ډاډ ګيرنه کول.

ـــــ **ډاډه کېدل**:- اص.زړۀ ته تسلي کېدل.

ـــــ **ډک (دے)**:- اص.زړۀ موړ دے.

ـــــ **ډکېدل**:- اص.زړۀ مړېدل.

ـــــ **ډک ډک کېدل**:- اص.زړۀ راډکېدل. باکې راتلل. زړۀ راپورته کېدل.

ـــــ **ډوب تلل**:- اص.په فکر کښې سرګرمه پرېوتل. ډېر پرېشانه کېدل.

زۀ چې غم د مهرويانو دا په زړۀ کړم
له دې غمه لاړ شي زړۀ دا څخه ډوب رحمٰن بابا

ـــــ **ډوبېدل**:- اص.په زړۀ باندې څۀ چل کېدل.

نن چې مې هېڅ په هيڅ زړۀ ډوبېږي
ښـــکارې ښېلتون راتـــه په ور راغے صادق

ـــــ **راپورته کېدل**:- اص(۱) د څۀ څيز خواهش پيدا کېدل(۲) زړۀ خرابېدل. باکې کول

ـــــ **راتلل**:- اص.مئينېدل. مينه پيدا کېدل.

ـــــ **راډ کېدل**:- اص. و ـــــ زړۀ ډک ډک کېدل.

ـــــ **راښکل**:- اص.زړۀ راکښل. ځان ته رانزدې کول.

ختک بر به چې زړونه په نغمو نغمو راکاږي
هــر جـز ئې مهجور دے اد کار د ښېلتانۀ کا حافظ

ـــــ **رپول**:- اص.باور نۀ کول. خطره محسوسول.

ـــــ **رپېدل**:- اص.په زړۀ کښې ويره پيدا کېدل. خطره محسوسول. په څۀ خبره يقين نۀ راتلل.

ـــــ **رم کول**:- اص.په زړه کښې ويره او ترهه پيدا کول.

په بنده باندې چې خپل فضل کوم کا
لـــه دنيـا و مافيها بـه ئې زړۀ رم کا سعيد

ـــــ **رېبل(د چا)**:-اص.زړۀ دړدول. زړۀ ته تکليف رَسوول. زړۀ پرې کول.

ـــــ **رېبل**:- اص.په زړۀ ډېر زيات اثر کول. رانغما ، ډېر زړدنا ريبي

ـــــ **ساتل (د چا)**:- اص.د چا د تسلي د پاره څۀ کار کول. د چا سره همدردي کول.

ـــــ **سپکول (په چا)**:- اص.د زړۀ براس ایستل. چاته ښۀ بدرد وئیل. د زړۀ ارمان ایستل. زړۀ سړول.

ـــــ **سپکېدل**:- اص.زړۀ سپک محسوسول. د زړۀ براس ایستلے کېدل. زړۀ سړېدل.

ـــــ **سپینول**:- اص.د زړۀ نه خیرے لرے کول. زړۀ صفا کول. روغه کول.

ـــــ **سپینېدل**:- اص.د ذړۀ نه خیرے لرے کېدل. روغه جوړه کېدل.

ـــــ **ستون کېدل**:- ا.ص.زړۀ ببرته گرځېدل.

عشق خوشحال تـه یـو هسې سبق ورکړ
چې ئې زړۀ د قال و قیل له درسه ستون شۀ خوشحال

ـــــ **سړول**:-اص.(۱) زړۀ یخول. تسله کېدل. (۲) بدل اخستل. (۳) مقصد حاصلول. کامیاب کېدل. (۴) د یخ شربت په څښلو زړۀ ته ارام او خوشحالي رسول.

ـــــ **سړېدل**:- اص.زړۀ ته ارام رسېدل. زړۀ یخېدل. مقصد حاصلېدل.

چې پرې زۀ نـازېدم هغه عالم نشته
په نور چا مې نۀ زړۀ ډاډ دے نۀ رسرېږ حافظ

ـــــ **سنگ کول**:- اص.زړۀ کاڼے کول. زړۀ سختول.

موم په رقیبانو ، په عاشقی باندې زړۀ نگ کړې خوشحال

ـــــ **سواندے کول**:- اص.همدردي او رحم کول.

ـــــ **سواندے کېدل**:- اص .همدردي او رحم کېدل.

ـــــ **سوځل**:- اص.رحم کول. همدردي کول.

ـــــ **سوخته**:- اص.زړۀ سوے. چې زړۀ ئې سوځیدلے وي.

زړۀ سوخته مئینان ډېر دي په جهان کښې
څـۀ یـواځې یـو مجنون نۀ ؤ عاشق خوشحال

ـــــ **سورے کول**:- اص.په زړۀ اثر کول. په زړۀ کښې تاثیر کول.

زړۀ مې په نغمو سره سورے کړ مطربانو
عقل ساقیـانـو پـه شراب راڅخه یووړ رحمٰن بابا

ـــــ **سوړېدل (سوړکېدل)**:- اص.زړۀ یخېدل. زړۀ سړېدل.

ـــــ **سوز**:- اص.زړۀ سوځوونکے. په زړۀ اثر کوونکے.

ښې نغمې زړۀ سوځي ، په رباب به ئې وچنگ کړې خوشحال

ـــــ **سوزول (په چا)**:- اص.د چا په درد تکلیف خفه کېدل. د بل په غم غمژن کېدل. زړۀ سول. همدردي کول.

ـــــ **سوځېدل (په چا)**:- اص.زړۀ ته تکلیف رسېدل. د بل په درد خفه کېدل. همدردي پیدا کېدل.

ـــــ **سوول (په چا)**: اص.و ـــــ زړۀ سوځول.

ـــــ **سوے**: – اص.هغه چې زړۀ ئې سوځېدلے وي. په زړۀ تاو خوړلے.

لامې ستـا د مـخ چراغ لیدلے نۀ ؤ
زۀ زړۀ سوے لاهاله پرې پروانه شوم خوشحال

ـــــ **سوے کول**:- اص.خفه کېدل. غمژن کېدل. همدردي کول.

څـربـه وے مې قـربـانـۍ لره پوهېږم
دا چې کړے تا په ما باندې زړۀ سوے دے خوشحال

ـــــ **سوے کېدل**:- اص.خفگان کېدل. همدردي کېدل.

چې زړۀ سوے ئې د حرم په صبحد هم نۀ شیدا بې درو
بې صـرفې گـذار د چـــا دے ؟ رحمٰن بابا

زړۀ ـــــ **سیزل**:- اص.زړۀ سوځېدل.

چې په ما باندې ئې زړۀ سېزي تپاک کا
الحـذر چېرې بـه ځان د اور خوراک کا خوشحال

ـــــ **شکول (شوکوول)**: – اص.زړۀ وېستل. زړۀ وړل.

ـــــ **شین کول**:- اص.زړۀ پخول. زړۀ ستړے کول. ډېر تنگول. ډېر خفه کول.

ـــــ **شین کول**: –اص.زړۀ پخول. زړۀ ستړے کول. ډېر تنگول. ډېر خفه کول.

ـــــ **شین کېدل**:- اص.زړۀ پخېدل. زړۀ ستړے کېدل. ډېر تنگېدل. ډېر خفه کېدل.

ـــــ **ښویول**:- اص.و ط زړۀ ایستل.

ـــــ **ښو ئېدل**:- اص.ډېر ویر ېدل.

ـــــ **ښۀ کول**:- اص.زړۀ ته تسلي ورکول. زړۀ خوشحالول.

ـــــ **ښۀ کېدل(په چا)** :- اص.تسلي کېدل. زړۀ ته خوشحالي رارسېدل.

زړۀ په چا ښۀ نۀ شي لباسي شۀ خلق واړه خوشحال

ـــــ **صاف کول**:- اص.منافقت نۀ کول. په زړۀ او په خوله یوه خبره کول. په زړۀ کښې خیرې نۀ لرل.

چې د پـلار سره دروغ نفاق خلاف کا
د نور چا سره به څرنگه زړۀ صاف کا خوشحال

ـــــ **صبرول**:- اص.زړۀ ټینگول. دبې قرارۍ اظهار نۀ کول.

ـــــ **غورزول/غورځول**:- اص.مایوسه کېدل. وار خطا کېدل. همت بائلل.

ـــــ **غورزېدل/ غورځېدل**:- اص.زمایوسه کېدل. د ویرې په حالت کښې زړۀ درزېدل.

ـــــ **غوښتل**:- اص.څۀ څیز ته زړۀ کېدل. څۀ څیز ته خواهش کېدل.

ـــــ **غولول**:- اص.زړۀ ته دوکه ورکول. زړۀ ته ددروغو تسلۍ ورکول.

ـــــ **کاڼے کول**:- اص.زړۀ سختول. د زړۀ نرمي ختمول.

ـــــ **کباب**:- اص کباب زړے هغه چې زړۀ ئې کباب شوے وي. یعني زړۀ ته ئې ډېر تاؤ رسېدلے وي.

د محبـوبې د جمـــال شـــغلې اتـــش
زۀ خوشـحال ئـې لـه لیـدلو زړه کبـاب ځـم

ـــــ **کباب کول**:- اص.زړۀ وریتوول.

هر مطرب چې غوږ ئې تاؤ که د رباب
پـه داؤ کښې زما زړۀ کاندې کباب رحمٰن بابا

ـــــ **کتل**:- اص،د چا د زړۀ په حقله اندازه اخېستل. د چا د هو یا نه په حقله په څۀ چل اندازه اخېستل.

ـــــ **کشال (دے)**:- اص.خواهش لرل. ارزو کول.

کـه یـو دم ئې جدائي وبله وشي
زړۀ ئې بیا وي د وصال وته کشال خوشحال

ـــــ **کښته پور ته کول**:- اص.فکر اواند ېښنه کول.

ـــــ **کښل**:- اص.زړۀ ایستل. زړۀ وړل. خوک ویرول.

ـــــ **کښې ځیگر خون کول**:- اص.په زړۀ غم تېرول. پټ په پټه زړۀ خوړل.

پـه خپـل زړۀ کښـې ځگـر خـون کـوه خوشـحاله
خپـل پـردې تـه د زړۀ مـه کـړه اغـاز

ـــــ **کورت کورت کېدل**:-اص .د څۀ څیز ډېر زیات خواهش او رغبت لرل.

ـــــ **کول (خپل)**:- اص.خپله رضا کول. په خپله خوښه کار کول.

سـل سبـلائې قبـلوه وریسې درومه
ښائسته د جهان کل واړه خپل زړۀ کا خوشحال

ـــــ **کول**:- اص.(۱) همت کول. جرات کول. (زړۀ مې پرې ونۀ کړے شو) (۲) غوښتل. د زړه نه څۀ کار کولو ته تیارېدل. که ابی زړۀ کوي نو په پیتی کښې هم تبې کولے شي (متل)

ـــــ **کېدل**:- اصز(۱) د څۀ څیز داخستو یا خوړلو خواهش .(۲) خوښه.

متل: هم مې زړۀ کېږي ، هم مې ساړۀ کېږي

هسې نـۀ دائې اوکـړه نـور بـه نۀ کړي
چې ئې زړۀ شي هغه کاندي بادشاهان رحمٰن بابا

**ــــ کېښودل:-** اص.جرات کول.

**ــــ ګرځېدل:-** اص.را ے بدلېدل. اعتقاد پورته کېدل.

**ــــ ګروېدل:-** اص،زړۀ ګرو کېدل. عاشق کېدل.

**ــــ لاس ته راوستل:-** اص،څوک خوشحالول یا راضي کول.

**ــــ لاند باند کېدل:-** اص .زړۀ ښکته پورته کېدل. په زړۀ کښې څۀ ویره یا وسوسه پیدا کېدل.

که زر خونو نه کاندې زړۀ ئې نۀ شي لاندې باندې۔

**ــــ لټول:-** اص.د زړۀ لټون کول. د زړۀ پټ حال معلومول.

د خوشـحال پـه زړۀ کښـې یـو دے
څـوک ئـې څـۀ لټـوي زړۀ

**ــــ لګول:-** اص.تعلق پیدا کول. مینه کول.

**ــــ لګېدل:-** اص۔ زمینه او تعلق پیدا کېدل. مطمئن کېدل.

**ــــ لوېدل:-** اص (۱) مایوسه کېدل. بې همته کېدل. (۲) ویرېدل.

**ــــ لویول:-** اص: د لوے زړۀ خاوند کېدل. صبر او برداشت کول.

**ــــ له غېرو پرېکول:-** اص: د زړۀ نه (بغیر د الله نه) نورو ټولو سره تعلق پرې کول. زړۀ د غیر الله نه پاکوول.

راشه زړۀ له غېرو پرې کړه اے خوشحاله
پـه امیـد ئې د دیـدار لـره زړۀ بناد خوشحال

**ــــ له واکه وتل:-** اص.په زړۀ اختیار نۀ پاتې کېدل.زړۀ بې قابو کېدل.

تر قـدم ئې د سګانو ځار لېمه مې
چې په تا پسې ئې اووت زړۀ له واک سعید

**ــــ ماتوول:-** اص.په زړۀ اثر کول. زړۀ خپل پلو راغب کول.

**ــــ ماتېدل:-** اص.مایوسه کېدل. خفه کېدل. د څۀ څیز شوق او مینه کمېدل.

**ــــ مړ کېدل:-** اص،په زړۀ کښې جوش او ولوله نۀ پاتے کېدل. په څه وجه باکې کېدل.

**ــــ مړېدل:-** اص.و ۔زړۀ کېدل۔

هغه ورځ مې زړۀ له خپله ځانه موړ شۀ
چې لـه لاسـه دل سنګین راځخه یـوړ خوشحال

**ــــ مښل کېدل:-** اص.زړۀ ډک کېدل ، د څۀ نوراکي څیز په وجه باکې کېدل۔

**ــــ ملال کېدل:-** اص،زړۀ خفه کېدل. په زړه څۀ غم راتلل.

هغـه دم چې زړۀ ملال شي
یو ساعت ورباندې کال شي رحمٰن بابا

**ــــ منل:-** اص.د زړۀ قبلول. په څۀ باور ا و یقین کېدل.

**ــــ موم کول:-** اص.زړۀ نرمول.

زړګے موم په غم د مرګ او د قیامت کړه
تا به د نمر نېزه وارمات اووۀ افلاک شي حافظ

**ــــ موندل (په چا):** اص.چاته د څۀ وئیلو یا دسوال جرات پیدا کېدل.

**ــــ میندل (موندل):-** اص.حوصله پیدا کېدل. زړۀ ورکېدل.

**ــــ ناخوړ سند کول:-** اص.زړۀ خفه کول.

یا به درست په حسد ډک یا به جاهل وي
چـا چې زړۀ پـه دا خبرو نا خور سند کړ خوشحال

**ــــ نازړۀ:-** اص،(۱) مړه خوا. ا.ق.ق(۲) چې زړۀ (دچا) غواړي او که نا. که زړۀ وي او که نۀ وي. خواه ناخواه

**ــــ نروب کېدل:-** اص.زړۀ نرے کېدل. زړۀ نرمېدل. زړۀ کښې رحم پیدا کېدل.

کـه ورتـه ژړا کړم فائده نیشته
سنګین زړۀ به ئې په چا نۀ شي نروبه خوشحال

**ــــ نرے کېدل:-** اص.زړۀ نرمېدل. زړۀ کښې شفقت پیدا کېدل. د زړۀ سختي لرے کېدل.

**ــــ نرے نرے کېدل:-** اص.وړے کېدل. زړۀ ئې نرے نرے کېدو۔ وړے وۀ.

**ــــ نړول:-** اص.زړۀ په قابو کښې کول.بې لارې کول.

د مـومن زړۀ نـړول عرش نړول دي
که نظر دې په حدیث د مصطفیٰ وي حافظ

**ــــ نړېدل:-** اص.زړۀ بې قابو کېدل. خفه کېدل. پریشانه کېدل.

زۀ چې تللي یـادوؤم زړۀ مې نړېږي
په ګوګل کښې مې د غم چړې غړېږي حافظ

**ــــ نژند کول:-** اص.فکر کول. غمژن کېدل. پریشانه کېدل.

مخ دې دا چې سخندان د زمانې شوې
ذار دې دا چې دې په فکر زړۀ نژند کړ خوشحال

**ــــ نښلول:-** اص.زړۀ بانډه کول. زړۀ چسپان کول. مجازاً زړۀ مئینول. زړۀ عاشق کول. مئینېدل.

یـو ځـله چې زړه د چا په مهر مینه بند کړې
شرط د یارۍ دا دے زړۀ بل ځاے مه نښلوه خوشحال

**ــــ نولول:-** اص.زړۀ په غم اخته کول. زړۀ کړول.

**ــــ نولېدل:-** اص.غمژن کېدل.

**ــــ نۀ ټینګېدل:-** اص.زړۀ په قابو کښې نۀ پاتے کېدل. زما زړۀ ټینګ نۀ شو په ژړا شوم.

**ــــ نیول (لاڅه):-** اص.منع کول. بندول

د لیلې نـه نـورېده د مجنون سینه
چې مې زړۀ له یاره نیسي خلق زور کا خوشحال

**ــــ نیول (یو کارته):-** اص.توکل کول.

**ــــ واکېدل:-** اص.زړۀ پرانستے کېدل. مجازاً زړۀ خوشحالېدل.

د چمـن ګلونـه واشـول
د خوشـحال نـه شـۀ زړۀ وا

**ــــ ورته پخېدل:-** اص.د چا د پاره په زړۀ کښې ډېر قهر او غصه پیدا کېدل. د چا نه بدل اخستو د پاره کینه لرل. د چا د شمنۍ په زړۀ کښې ساتل.

**ــــ ورکول:-** اص.مئینېدل. عاشق کېدل.

هیڅـا اونـۀ کـړه زمـا د زړۀ سـاتنه
هر سړے مې زړۀ درد من کا چې زړۀ ورکړم خوشحال

**ــــ وړل:-** اص.څوک په ځان مئینول.

سر و مال د سړي لوټ کړي زړۀ ئې یوسي
لـه دې هسې دلستـانـه وایم څۀ! رحمٰن بابا

**ــــ وژل:-** اص.صبر کول. په زړۀ جبر کول. وښکل یا اوښکل یا اوباسل

**ــــ وکاږل:-** اص.(۱) لفظي: زړۀ د سینې نه راوښکل یا بالاکول. محاوره. مئینول.(۲) ویرول. دهشت پیدا کول.

د مـږګانـو پـه پنجه مې زړۀ وکاږي
خداے د ترکو مستې سترګې کړې زمرۍ رحمٰن بابا

**ــــ ولاړېدل:-** اص.د څۀ څیز خوړلو د پاره زړۀ کېدل.اشتهار پیدا کېدل.

**ــــ وهل:-** اص.په زړۀ شک لرل. د چاپه خبره یقین نۀ راتلل. باورنۀ کول.

**ــــ ویستل/ ایستل/اباسل:-** اص.زړۀ را بحر کول. زړۀ شو کوول.

**ــــ هاریا (درپسي):-** اص.زړۀ په چابا ئلل. په چا مئنېدل.

کلـه کلـه ئـې لـه حالـه خبـر اخلـه
بېچـاره خوشـحال خپـل زړه ورپسـې هـار بیـا

**ــــ هوا خوړل:-** اص.خواهش پیدا کېدل. زړۀ غوښتل.

زړۀ مې خوري هو پر مې پېرئ رنځونو مات کړه
نــــۀ رسي مــــارغــۀ شکست پر تر خپل مراده حافظ

**ــــ يخول:-** اص.(۱) د زړۀ ارمان ايستل(۲)دښمن نه بلد اخستل.
په طاعت په عبادت مې زړۀ يخ نۀ کړ
همېشه د معيصت پــه اور کباب يم رحمٰن بابا

**ــــ ئې د کتو دے:-** ډېر همت ناکه او د زغم خاوندد ے.

**بند ـــــ:-** اص.بندي شوے زړۀ. قيد زړۀ.
ستا په زلفو کښې دا بند زړۀ خواست له چا کا
چې خـــلاصے ددې اســير نــۀ دې نصيب محمدي صاحبزاده

**ــــ په چا سپکول:-** اص. په چا باندې خپله غصه ايستل.

**پهــــ ادا کول:-** اص. په پټه ادا کول.
يو وېښتۀ مې د صورت کوږ شوے نۀ د ے
هسې رنــګ دې پټ پېلم پــه زړۀ ادا کړم رحمٰن بابا

**پهــــ افګار:-** اص. زخمي زړۀ. پرېشان خاطر.
اورنګ راته يو کال اوشۀ چې پروت د ے
پــه صورت حېران پرېشان په زړۀ افګار خوشحال

**پــه ـــــ اورلګېدل:-** اص. (۱) د ګرمـۍ پـه وجـه ډېر تـږے کېـدل. د يخ او مفرح شربت څښلو د پاره زړۀکېدل. (۲) د چاپه عشق کښې مبتلا کېدل.

**پـه ــــ پورې کېدل:-** اص.زړۀ تـه نـزدې کېـدل. محبوب کېـدل. دوست اشـنا کېدل.

**پهــــ پوهېدل:-** اص.د زړۀ په خبره پوهېدل.

**پهــــ تور بدل:-** اص. واسي کېدل. د چا په خبره باور او يقين نه کول.

**پهــــ تېر:-** اص په زړه کښې راغلي. په خيال کښې تېر شوي.
چې مې نۀ وے په زړۀ تېر تر خلۀ وتلي
پــه هغه کار مې تهمت کاندي ناؤلي سعيد خټک

**پهــــ داغ کېدل:-** اص.په زړۀ باندې داغ جوړېدل. څه بده چاره يا غم همېش لـه په زړۀ کښې ياد پاتې کېدل.
خوشحال ددۀ نيکۀ د ے ، د نيکۀ ئې داغ په زړۀ شۀ خوشحال

**پهــــ (دے):-** اص زپه زړۀ کښې موجود د ے. په زړۀ کښې اوړي راوړي.
ګوره بيا ئې کوم دروغ نفاق په زړۀ د ے
منافق پــه خپــل ګنـاه چې اعتراف کا خوشحال

**پهــــ زور تېرول:-** اص. په زړۀ جبر کول. څه خبره په زور زغمل.

**پهــــ سخت:-** اص. سنګېدل. ډېر کلک زړۀ لرونکے.
څــــۀ بــلا زېبائے ، بې نظيره محبوبا ئے
که دا عيب دې نۀ وے په زړۀ سخته ئې بلا خوشحال

**پهــــ سنګ کېدل:-** اص. زړه سختېدل. کلک زړه خاوند کېدل.
پـــه ښـۀ خـوئي سره د خلقو افساني شې
خدا ے زما له کم بختۍ په زړۀ سنګ کړې رحمٰن بابا

**پهــــ څه لګېدل:-** اص.خوښول.
اور چې په ځان بل کړې په خپل ځان باندې لګېږي
اوس مې دا خـــبره پـــــــه زړۀ ښـۀ اولګېدل خوشحال

**پهــــ غنې راښکل:-** اص.پـه تکليف او ګـران کښـې وخت تېـرول. په ناموافقه ماحول کښې ژوند تېرول.

**پهــــ کښې خوړل کېدل:-** اص. په څه خبره پوهېدل خو د هغې اظهـار نـه ښکاره کول.

**پهــــ کښې خيره درلودل/لرل:-** اص.په زړۀ کښې شک لرل. په زړۀ کښې کينه لرل.

**پهــــ کښې زهير بدل:-** اص.و ـــــ زړه خوړل.

**پهــــ کښې ساتل:-** اص. څه خبره ياده لرل. خبره پټه ساتل.

**پهــــ کښې غلا لرل:-** اص.په زړه کښې منافقت لرل.
عاشقان د عشق لــه کاره انکار نۀ کا
فاسقان به په خپل زړۀ کښې لرې غلا خوشحال

**پهــــ کښې غل کېدل:-** اص.خپل خواهش پټ ساتل.

**پهــــ کښې کول ربېل:-** اص. فکر کول.

**پـهــــ کښې ګرځېـدل:-** اص. د څـه خبـرې پـه حقلـه پـه زړۀ کښـې وسواس او خطره پېدا کېدل. په زړۀ کښې خيال راتلل. رايادېدل.

**پهــــ کښې لاس ګرځېدل:-** اص.وسواس کېدل. بې قراري کېدل.

**پهــــ کښې ناست (دے):** اص.داسي خبره کول کومه چې د اوريدونکي په زړۀ کښې هم وي. د چا د زړۀ د خواهش يا تجويز وغېره سره موافقه خبره کول.

**پهــــ کښې نقش کول:-** اص.څه خبره ښۀ يادول چې هيره نه شي.

**پهــــ کښې نقش کېدل:-** اص.څه خبره ښۀ يادېدل.
يو پــه يو لـه ما لـره خلوت اوکړه جانا
نقش مې په زړه باندې جدا هره وينا خواجه محمد بنګش

**پهــــ کول:-** اص.رايادول.

**پهــــ (را، در) کېدل:-** اص. را يادېدل.

**پهــــ کښې ګرځول:-** اص. پـه زړۀ کښـې راتلل. په زړۀ کښـې يـادول. پـه زړۀ کښې تېرېدل.
چې په زړۀ کښې ګرځوم په تا معلوم دي
تتر ويتي غـوندې ويل تولـه د زړو کړې خوشحال

**پهــــ کښې ګرځېدل:-** اص،په زړۀ کښې تېرېدل. يادېدل.
هغه کار چې تر سر ورسېږي بخت د ے
چې پــــــه زړۀ ګرځي په وينه په منام خوشحال

**پهــــ ګوتې وهل:-** اص.د چا غم اوپرېشاني زياتول.

**پـهــــ مـالګې پاشـل/ دوړول:-** اص. چاتـه طعنـه ورکـول. پـه ظاهره چـا سره همدردي کول او په زړه کښې دښمني ساتل.

**پهــــ منګل ښخول:-** اص. زړۀ ته سخت تکليف يا زخم رسوول.لـوے تکليف يا مصيبت ورپېښول.
يـــو قـــرين هسې پېدا نـۀ شۀ راڅخه
چې زما په زړۀ ئې نۀ کړه منګل ښخه خوشحال

**پهــــ ناسازه ورکول:-** اص. څه کار يا خبره داسې کول چې په زړۀ ناسازه ولګي.
خــــو يـــــو ذره پـــــه زړۀ ناسازه درکا
په ماني کښې نۀ دعوې کاندې اغازې خوشحال

**پهــــ نرے کول:-** اص. د زړۀ کلکوالے لرے کول. زړۀ نرمول په زړۀ کښې نرمي پېدا کول.
زۀ رحمٰــن پـــه زړه نـــرے کـــړم هغـــو جونـــو
چـــې ئـــې مـــلا وې د وېښـــتۀ پـــه دود نـــرۍ

**پهــــ نظر کېدل:-** اص. زړۀ ته لېدل. توجه کول.

**پهــــ ننه وتل:-** اص. مينه پېدا کېدل. ډېر نزدې کېدل.

**پهــــ ورولېدل:-** اص،په زړه کښې ګرځېدل.

**پهــــ وژلے کېدل:-** اص. په زړه باندې زخمي کېدل.
هېڅ په ستر ګو لېدۀ نۀ شي يو قصابه د ے
نــــۀ ئې لاس نـۀ ئې چـاړۀ په زړۀ واژۀ شم خوشحال

**پهــــ ئې ځنګل ولاړ دے:-** اص. هيڅ خبره اثر پرې نه کوي.

**په دوه ــــ کښې:-** اص. په شک کښې چې دا اوکړم که دا اوکړم.

**تر ــــ ښکته**:-اص. هغه شیز چې د زړه بوج پرې دپاسه پروت وي یا چې زړه دلاندې کړے وي او راوښکلے نه شي.

هسې مال رامه کړۀ چې ئې ځاے وي تر زړۀ لاندې
هسې امــوال راکړه چې ئې ځاے وي د زړۀ د پاس　　خوشحال

**تر ــــ کول**:- اص. یادول. په یاد کښې راوستل.

د جهــان کښې غصې واړه تــر شـا کا
که سړے په وخت د قهر مرګ تر زړۀ کا　　خوشحال

**تر ــــ ـ ویني څڅېدل**:- اص. و ــــ د زړۀ نه ویني څڅېدل.

**چاته ــــ پړسېدل**:-اص. د چا برخلاف په زړۀ کښې غصه او کینه پېدا کېدل.

**د چا ــــ لاس ته راوستل**:- اص. د چا زړه قابو کول.

[illegible]
غصه کول.

**د چا په ــــ مالګې پاشل/ دوړول**:- اِص. چاته ډېر دوک دړد رسوول. د چا زړه په طعنو مانو ژوبل کول.

**د ــــ ارتګي**:- اص. د زړه ارت والے. لوے زړتوب. د زړه کشادګي او فراخي.

**د ــــ ارمان**:- اص. د زړه خواهش.

**د ــــ ایستل**:- اص.د زړه ارمان پوره کول. خپل خواهش تر سره رسوول.

**د ــــ پوره کول**:- اص. و ــــ د زړه ارمان ایستل.

**د ــــ اندیښنه**:- اص. (۱) د زړه فکر. د زړه سوچ. (۲) د زړه اندوه. خطره.

چې حانئ ته دې هوس د زړه په ذور کړ
ا خالي ده ستا د زړۀ انـد یښنه خـامه　　خوشحال

**د ــــ اوبۀ څښکل (په څۀ کښې)**:- اص. خبره په زړه لګېدل. د څه خبرې په زړۀ اثر کول.

**د ــــ اوبۀ نۀ څښل**:- اص. د څه خبرې په زړۀ اثر نه کېدل. څه خبره په زړه نه لګېدل.

**د ــــ اور سړول**:- اص. خپل مطلب تر سره کول. خپل مقصد حاصلول.

**د ــــ اور سړېدل**:- لاص.خپل مطلب حاصلېدل.

**د ــــ ائینه**:- اص. د زړه شیشه یعنه زړه.

چې ایرې دې قدرئ پورې شوشي
آئینه د هغــو زړونـــو وي د ریـا　　حمید

**د ــــ بخار**:- اِص.د زړه بړاس. د زړه غصه.

**د ــــ بخار ایستل**:-اص. د زړه بړاس ایستل. چاته ښه غصه کول. بدردوئیل.

**د ــــ برم**:- اص. د زړه طاقت. وس.

**د ــــ بړاس**:- اص. و ــــــ د زړه بخار.

**د ــــ پاس**:- اص. هغه شیز چې د زړه دپاسه پروت وي (او په اسانه راخستے شي).

هسې مال رامه کړه چې ئې ځاے وي تر زړۀ ښکته
هسې امـــوال راکـړه چې ئې ځاے وي د زړۀ پاس　　خوشحال

**د ــــ په زور**:- اص. د زړه په طاقت. د زړه په برم.

نۀ اندوه د مدح وځم ، نۀ هغه کس یـم
چې د زړۀ په زور مې شعر چا پسند کړ　　خوشحال

**د ــــ په زور تلل**:- اص. په ځان تکلیف تېرول. ډېر په تکلیف سره تلل. د زړۀ په طاقت ګرځېدل.

**د ــــ په سر**:- اص. مراد تـرې د زړۀ په ښـه ځـاے کښې. ځکه چې د زړه سر د زړه غوره برخه ګڼلے شي.

لکه خداے چې د یار حسن بې نظیر کړ
هسې مــا د زړۀ په سر باندې تصویر کړ　　خوشحال

**د ــــ په ستر ګولیدل**:- اص. (۱) په تصور او خیال کښې لیدل.(۲) ډېر په توجه او غور سره لیدل.

**د ــــ په عین**:- اص. د زړۀ په سترګه د زړه په نظر. د بصیرت په کتنه.

د کـــــونـېـنــو نـنداره د زړۀ په عېن
د ویښ والي په دود کړم ، تاته اودۀ یم　　خوشحال

**د ــــ په غوره**:- اص. د زړه په انتخاب. دزړه غوره کړے.

مــــا یــوه د زړۀ پــه غــوره ده نیولې
که هر څو په جهان ډېرې شي نګارې　　خوشحال

**د ــــ په غوړو اوربدل**:- اِص مراد ترې ډېر په غور سره (اورېدل) یا د بصیرت په نظر غورکول.

د ـــــ **نه غورځېدل**:- اص. هېرېدل. ياد نۀ پاتے کېدل.

د ــــ **نه لرے کول**:- اص. هېرول.

دروغـــژن بــــه دې بيا لرې کا د زړۀ نه
که هر څو ئې په راستی. پورې په زړۀ شې خوشحال

د ـــــ **نه لرے کېدل**:- اص. هېرېدل. ياد نۀ پاتے کېدل.

د ــــ **نه لوخړې ختل**:- اص.د زړۀ نه لو خړې وتل. ډېر په تکليف کښے کېدل.

د ــــ **نه لوخړې وتل**:- اص.و ـــــــ د زړۀ نه لوخړې ختل.

د ــــ **نه وتل**:- اص.هېرېدل. ياد نۀ پاتے کېدل.

د ....... **نــه وئيـل**:-اص. د زړۀ د اخلاصـه وئيـل. هغـه خبـره کـول چـې پـه رښتيا ئې زړۀ غواړي.

د ــــ **نه وينې څڅېدل**:- اص.ډېر غمژن کېدل. ډېر تکليف کښې کښيوتل.

د ــــ **وتل**:- اص. زړۀ بهر ته راوتل.

تا چې مړې مړې سترګې راواړولې
پټ لــه ګــوګل د زړۀ وتل مې اوليد صادق

د ــــ **وړل**:- اص. د زړۀ تښتول. د چا مينه په زړۀ کښې پيدا کېدل.

هېڅ په حق د حقدارانو نۀ ګروهېږي
همېشه زمـــا د زړۀ پـه وړ منکر ئې رحمٰن بابا

د ــــ **وسواس**:- اص. فکر انديښنه.

سود و زيان واړه له خدايه دې ببشکه
پـــه نــاحقه ولې کړې د زړۀ وسواس (خواجه محمد)

د ــــ **وسواس وتل**:- اص. فکر انديښنه لرے کېدل. زړۀ قرار پېدل.

د ــــ **ولې پرېکېدل**:-اص. د زړګې ولې پرېکېدل. څه اسره نه پاتے کېدل. په تکليف کښې ګېرېدل.

د ــــ **ولې سکڼل**:- اص. ډېر تکليف رسوول. زهيرول.

سکڼې د زړۀ ولې چې په شونډو کښې موسېږي
تبغ ئې د غمـــزې دا څــله لاځــۀ تېرۀ ساز دے خوشحال

د ــــ **ولې غوځول**:- اص. زړه د کاره ايستل. د زړه زور ختمول.

درد و غم به دې د زړۀ ولې کا غوځې
ګرفتار په درد و غم د جانان مې شې رحمٰن بابا

د ــــ **وينې**:- اص. د زړۀ درد او تکليف.

نن مې بيا له تورو سترګو سره جنګ دے
پـــه لبـــانـــو ئې د زړۀ د وينو رنګ دے تېمور شاه ابدالي

د ــــ **وينې څښل**:- اص. زړۀ ته درد تکليف رسوول. زهيرول.

په مطلب دې د سرو شونډو نۀ پوهېږم
چې مې څښې وينې د زړۀ هر دم په څۀ رحمٰن بابا

د ــــ **وينې خوړل**:- اص. ځان کړول. ځان زهيرول.

تل په دا طلب کښې خورمه
د زړۀ وينې يــک تـنـهـا خوشحال

د ــــ **وينې شومل**:- اص. د زړۀ وينې څښل.

ستا د شونډو سر که سور وي تعجب نۀ دے
چې پـــرې هـــر کلـه د زړونـو وينې شومې خوشحال

د ــــ **هوا**:- اص. د زړۀ خواهش.

د زړۀ هـــوا مـې ساري وش شوه
چې زۀ دافع ئې ګوره هارون نۀ شۀ سعيد خټک

د ــــ **زړونو سره لاروي**:- اص. د يـو دوست زړه د بـل دوست د زړه پـه حـال (خواهش وغېره) پوهېږي.

(د) **لوے ـــ(خاوند)**:- اص. ډېر همت ناک.

له ــــــ **ايستل**:- اص. د زړه نه بهر کول. هېرول. له زړۀ بدر کول.

چې په عقل سره عشق له زړۀ اوباسم
ننه بـــاسـم د مـــزري پـه غار پيشو حميد

له ــــــ **بدر کول**:- اص. و ـــــــ له زړۀ ايستل.

د يوه په طلب يو کړه ځان له واړو
نـور عالم کړه همګي له زړۀ بدر سعيد

له ــــ **بهر کول**:- اص. و ــــــ له زړۀ ايستل.

تــاوې خــه نوم مې ازبر کابل سبق له زړۀ بهر کا
تل مې تۀ ئې په خاطر کښې زبرخو هسې وي کنه خوشحال

له ــــ **پريوتل**:- اص. د زړۀ نه غورځېدل. مينه نه پاتے کېدل.

چې له زړونو پرېوځي خدا ے ته نۀ قبلېږي
کــــه ولاړ پـــه عـرفـات مروا صفا وي حافظ

له ــــ **ايستل/ويستل**:- اص. هيرول. له ياد ويستل.

چې يک لخته دې خوشحال له زړۀ نه وويست
در پـــوهـېږم ډار چې نــۀ کـېږې لـــه خونه خوشحال

له ــــــ **يستل/ايستل/اباسل**:- اص. له زړه لرے کول.

که هزار کاندې پښتون مغل به نۀ شي
بـويـه دا چې له زړۀ اوباسي دا خيال خوشحال

يو ــــ **او يو زبان**:- اص. په خوله او په زړه يو شان. چې منافقت په کښې نۀ وي.

چې په مينه کښې يو زړۀ او يو زبان وي
تـــر هـــر چـــا د هغو چار په برکت ده خوشحال

**زړه**:- (ز+ړ+ه) [پ.اس.مؤ.ج. زړې]بوډۍ. د ډېر عمر ښځه.

**زړۀ پورې**:- (زړۀ + پو + رے) [پ.ص]زړۀ ته نژدې. د زړۀ خوښ.

**زړۀ ترکے**:-(زړۀ + ت + ر+ کَے) [ق.اس ص. مذ]چې زړۀ ئې خفه وي. غمژن.

**زړۀ ترکے**:- (زړۀ +ت+ر+ کے) [ق.اس.مؤ]خفګان .غمژنتوب.

**زړۀ تورن**:-(زړۀ+تو+ر+ن) [پ.اس ص. مذ](۱) هغه سړے چې زړۀ ئې تور وي. يعني. صفا نۀ وي. بد نيته. بد عمله سړے. (۲) هغه سړے چې دهر چا نه ئې زړۀ تور شوے وي. متنفر. کرکه کوونکے.

ــــ **کېدل (د چا نه)**:- اص.زړۀ د چا نه تورېدل. نفرت يا کرکه پيدا کېدل. په زړۀ کښې د چا خلاف خبرې راتلل.

**زړۀ تورے**:- (زړۀ + تو + رے) [پ.اس ص.مذ](و ـــ زړۀ تورن)

**زړۀ ټکۍ**:- (زړۀ + ټ + کَ + ۍ) [د زړۀ راز. د زړۀ مقصد]

**زړۀ چوونکے**:- (زړۀ +چو+وو+ ن + کے) [پ.اس.مذ](۱) هغه څيز يا کار چې په سړي ډېر بد لګي. لکه چې زړۀ ئې پرې چوي. ډېر ناخوښه. (۲)هغه کار چې د لاسو پښو په ځاے زړۀ سړے کوي. هغه کار چې اوږد وي او ډېره خواري غواړي.

ــــ **آواز**:- اص. ډېر تېز او سخت اواز.

**زړۀ خسته**:- (زړۀ + خَ + س + تَ) [پ.اس ص. ] غمزده. غمګين. زړه سترے.

**زړۀ خلاصے**:-(زړۀ+خ+لا+صے)[پ. اس ص.مذ]د زړۀ خلاصېدنه.د زړۀ ازاديدنه.

**زړۀ خـــوږينے**:- (زړۀ + خ + وَ + ږی + نَ + ی) [پ.اس مـــؤ]د زړۀ د خوږينولـــو کارونه. هغه کارونه چې زړۀ ته پرې بې کچه ډېر دوک رسي.

**زړۀ خوږې**:- (زړۀ+ خو + ګَ/ ژَ + ئ) [پ.اس ص.مؤ] زړۀ سواندي. د زړۀ سوځو نه په چا. ترس. رحم کونه.

**زړۀ ډغی**:- (زړۀ + دَ + غَ + ی) [پ.اس.مؤ](و ــــــ زړۀ تورن)

**زړۀ ډغي:-** (زړۀ + ډَ + غي) [اپ.اس] زړۀ تورن توب. نفرت. کرکه.

**زړه رابښکون:-**(زړۀ +را+خ/ش+کو+ ن) [اپ.اس.مذ]د زړۀ رابښکنه. دل کشي. د څۀ څيز د خپلې څۀ خوبۍ په وجه د زړۀ ځان ته رابښکنه.

**زړۀ رابښکونکے:-** (زړۀ +را+خ / ش+کو+ن+کے) [اپ.اس فاع. مذ.ج: زړۀ رابښکونکي] هغه څيز چې د خپلې څۀ خوبۍ په وجه د سړي زړۀ ځان ته راکاږي. دلکش. ښکلے. ښائسته.

**زړۀ رپوونکے:-**(زړۀ + رَ + پَ + وو + ن + کے) [اپ.اس ص.مذ.ج: زړۀ رپوونکي] هغه څيز يا کار وغيره چې په ليدو يا اوريدو ئې د سړي زړۀ اورپې. ويروونکے. خوفناک. خطرناک.

**زړۀ سترے:-** (زړۀ+س+ت+ړ ے) [اپ. اس ص.مذ.ج: زړۀ ستړي] (۱) هغه سړے چې په کار ئې د بدن په ځاے زړۀ ستړے شوے وي. د کوم سخت يا نا خوښه اوږد کار نه متنفره. (۲) هغه کار چې د کوونکي زړۀ ستړے کوي. اوږد. غير دلچسپ او محنت طلب کار.

**زړۀ سواندے:-** (زړۀ + س + وا + ن + ده) [اپ.اس ص.مذ] هغه چې د چا په غم تکليف ئې زړه سوځي. ترسناک. رحمدل.

**زړۀ سواندې:-** (زړه + س + وا + ن + دې) [اپ.اس.مؤ] زړۀ سوځو نه په چا. رحم کونه ترس خوړل.(زړۀ وسواندے ورسره وکړه)

**ــــ کول:-** اص.د چا په تکليف زړۀ سوځول. رحم کول. ترس خوړل. د زړۀ يخ والے. چې په زړۀ کښې ئې څۀ گرمي. جوش. ولوله نۀ وي.

**زړۀ ســوے:-**(زړۀ+ س + وَ ے) [اپ.اس ص.مــذ.ج: زړۀ ســوي]چې زړۀ ئــې سوځېدلے وي. زړۀ خوړينے.

**زړۀ سوے:-** (زړۀ + س + وَ ے) [اپ.ص.مذ]ترس. رحم.همدردي.

چې زړۀ سوے ئې د حرم په سېدهم نۀ شي
دا بې درد و بې صرفې گــذار د چا دے    رحمٰن بابا

**زړۀ شــينے:-** (زړۀ + شـی + نـې) [اپ.اس مـؤ]د زړۀ شـين کېدنـه. زړۀ ستـړے کېدنه. د زړۀ پخېدنه. د څۀ څيز ا کارنه په زړۀ کښې نفرت لرنه. د دۀ د ناکړدو دلاسه زړۀ شين يم.

**زړۀ شينے:-**(زړۀ+شي+ لے) [اپ.اس ص.مذ.ج: زړۀ شيني]ډېر تنگ. دردېدلے. کړېدلے.

**زړۀ غلوونکے:-**(زړۀ + غ + لَ + وو + ن + کَے) [اپ.اس ص. مذ]هغه څيز يا کار چې زړۀ پرې غولېږي. دوکه ورکوونکے. تېر باسونکے.

**زړۀ غوڅه وونکے:-** (زړه + غ + سَ + وو + ن + کَے) [اپ.اس ص.مذ] هغه څيز يا کار چې پرې د سړي زړۀ غوڅېږي. زړۀ تـه ډېر زيات دوک يا غم رسوونکے.

**زړۀ غوښتے:-** (زړۀ + غو+ خ/ش + تَ + ئ) [اپ.اس ص.مؤ]هغه کار يا څيز چې زړه ئې غواړي. د زړۀ د خوښې څيز يا کار. دل پسند.

**زړۀ غونے:-** (ز + ړ + غو + نے) [اپ.اس ص. مذ.ج: زړۀ غوني]ژړۀ غونے. ژړا تـه نژدې.

**زړۀ کښنونکے:-** اص (زړۀ + ک + شو/ خو + ن + کے) [اپ.اس فاع. مذ] و ـــــ زړۀ وړونکے.

**زړۀ گوگه:-**(ز+ړ+ه+ گ+ر+گ+ه) [اپ.اس ص.مؤ](۱)د زړې ورستې ونې ستېه. (۲) د ماشومانو يوه لوبه.

**زړه لوغې:-**(ز+ړ+ه+لو+غې) [ق.اس.مؤ.ج: زړۀ لوغې]ازاړه غوا. هغه غوا چې د ډېرې مودې راسې ئې پې ورکوي.

**زړۀ ماتوالے:-**(زړۀ+ما+ت+وا+لے)[اپ.ص.مذ]دزړۀ ماتېدونے حالت.دل شکني.

**زړۀ ماتوونکے:-**(زړه+ما+ت+وو+ن+کے) [اپ.فاع.مذ.ج: زړۀ ماتوونکي] هغه کار يا څيز وغيره چې د سړي زړه پرې ماتېږي. زړۀ مايوسه کوونکے. همت يا حوصله ختموونکے. دل شکن.

**زړۀ ور:-**(زړۀ+و +ر) [اپ.اس ص.مـذ. مـؤ: زړۀ وره. ج: زړه وړے] بهـادر. ځوانمرد. همت ناک.

چې پــه زور ورسره نۀ ئې برابر
د هغو تر څنگه مه کښېنه زړۀ ور    رحمٰن بابا

**ــــ کېدل:-** اص. بهادري کول. ځوانمردي کول. همت کول.

پــه اُميد د آئنــدو زړۀ ور مه شه
نسيه نقد ځېله بېل کړه اوتر مه شه    رحمٰن بابا

**زړۀ ورتوب:-**(ړه+ور+تو+ب)[اپ.اس.مذ] زړۀ ورتيا.ځوانمردي.بهادري. همت.

**ــــ کول:-** اص.ځوانمردی کول. زړه ورتيا کول. همت کول. جرات کول.

**زړه ورتيا:-** (زړۀ + وَ + ر + ت + يا) [اپ.اس.مؤ]و ـــــ زړۀ ورتوب.

**زړۀ وړونکے:-**(زړۀ +و+ړو+ن+ کے) [اپ.اس ص.مذ](۱)هغه څيز چې د خپلې څۀ خوبۍ په وجه د سړي زړۀ يوسي ښائسته.ښکلے. (۲) معشوقه. محبوب. زړۀ وړونې. زړۀ وړونې.

**زړۀ وېروونکے:-**(زړۀ+و+ړو+ن+کے) [اپ.اس ص.مذ]زړۀ ورکوونکے.ډاډه کوونکے. همت حوصله زياتوونکے.

**زړۀ ړونے:-** (زړۀ+وَ+ړو+ نے) [اپ.اس ص.مذ](و ـــ زړۀ وړونکے) پښتو ژبه

**زړے:-** (ز + ړے) [اپ.اس.مذ.ج: زړي](۱) تخم. (۲) د ميوې مغز. (۳) نسل.

د جهان پـــه واړه اونـــو نـفـــل اوکا
هره اونه خپل خپل خوند لري خپل زړے    خوشحال

**نهالوول:-** اص.تخم کرل. بوټے لگول.

د خـــر مـــا زړے نهـال کا ورته گوري
چې دا سورے دا مېوه به مې پکار شي    رحمٰن بابا

**زړے:-** (ز + ړَے) [اپ.اس.مذ]زېړے.ژېړے. يرقان.

**زړېدل:-** (ز+ړي+د+ل) [اپ مص لا] زوړ کېدل. بوډاکېدل. وخت پرې تېرېدل. ورستېدل.

**زړېدنگ:-** (ز + ړي + دَ + ن + گ) [ق.حمص]زړېدنه.

**زړېدنه:-** (ز + ړي + د + نَه) [اپ.حمص]بوډا کېدنه. د ډېر عمر کېدنه. ډېر وخت پرې تېرېدنه. ورستېدنه. زړېدۀ.

**زړېدونکے:-**(ز+ړي+دو+ن+کے)[اپ.مف.مذ.ج:زړېدونکي.مؤ:زړېدونکې]بوډا کېدونکے. د ډېر عمر کېدونکے. ډېر وخت پرتېرېدونکے. ورستېدونکے.

**زړېده:-** (ز+ړي+ده) [اپ.حمص]و ـــــ زړېدنه.

**زړه لوغزه:-** (زړه + لَو + غ + زه) [ق.اس.مؤ](و ـــــ زړۀ لوغې)

**زړيه غوړي:-**(ز+ړي+ ه + غ + و + ړي) [ق.اس ص.مذ]ازاړۀ غوړي. زړخن.هغه غواړي چې د ډېر وخت پرې تېر شوے وي او خوند او بوئې بدل شوے وي.

**ززغولي:-** (زَ + ز + غَو + لي) [ق.اس.مؤ]جوغالے.

**زژگے:-** (ز + ژ + گے) [اپ (ظفر). اس.مذ.ج: زژگې]سژگے. سشگے

**زږ:-** (ز +ږ) [اپ.ص.مذ.مؤ: زږه] ځيږ. سخت. تند.

**زږول:-** (ز + گَ + ږ + ل) [اپ.مص مت](و ـــــ زيږول)

**زږه:-** (ز + گه) [اپ.ص.مؤ.ج: زږې](و ـــــ زږ)

**زږۀ:-** (ز + گ/ ژه) [اپ.ص.مؤ](و ـــــ زږ)

**زږے:-** (ز + گ + ے) [اس.مذ.ج: زږي]د اوښ د خيټې موړه. تتۍ.زيږے.

**زږېدل:-** (ز + گي/ ژے + د + ل) [اپ. مص لا](و ـــــ زيږېدل)

**زست:-** (ز + س +ت) و ـــــ زيست.

**زشت:-** (ز+ ش + ت) [اف.ص.مذ.مؤ: زشته.ج: زشتې](۱) خراب. بد. ناکاره. (۲) بد شکله.

خپل خپل مخ پکښې لیدهٔ شي
کــه ښـــوک زشت وي که زیبا          رحمٰن بابا

**زشت**:- (ز + ش + ت) [فا.ص.مذ]بد. ناروا.

ښرنګ زشت کار دے که ګورې په جهان کښې
چې تېپـــوس عیب و شـــاهین وتــه ښښېل کا          سعید

**ـــــ خو**:-(ے) (زشت + خو) [ف تر. مذ]بدخویه. خراب خوئ والا بد خصلت. بد مزاجه.

**ـــــ خوي**:- (زشت + خو + يي) [ف تر. اس]بد خويي. بد خصلتي. بدیا ناکاره. خوئ.

**ـــــ رو**:- (زشت + رو) [ف تر.ص]بد شکل چې مخ ئې بد رنګ وي. بد رنګه. بد مخے.

**ـــــ وخوب**:- اِص.ښهٔ او بد.

چــې نظــر ئــې لــه صــورته پــه معنٰــی کــړ
و رحمٰــن وتــه یکســان شــو زشــت و خــوب

**زشت**:- (ز + ش + ت) [پ.ص.مذ]ډېر. ډېر زیات. زښت.

**زشته**:- (ز + ش + تَ + ه) [پ.ص.مؤ]ډیره زیاته.

وکـــړه ملګري بلعم د خدا ے د غلیمانو
تاج ئې د ایمان بائلو ، رسوا نام ئې زشته          حافظ

**زشتي**:- (ز + ش + ت + ي) [فا.ص]بدي.

**ـــــ لرل**:- اِص. بدي لرل.

**زشکله**:- (ز + ش + کَ + لَه) [پ. ]او ـــــ ښښکله.

**زښا**:- (زَ+ حا/شا) [ق.اس.مؤ]کنځلے.

**زښت**:- (ز+خ/ ش + ت) [پ.ص.مذ] (۱)د ډېر. زیات پـه معنـي کښـې راځـي. لوے. ډېر فرق. ښهٔ (۲)کله کله د تاکید/ مبالغې دپاره هم بـل هم داسې لفظ سره هم راځي لکه زښت ډېرے. زیات

**زښته**:- (ز+خ/ش+تَه) [پ.ص.مؤ.ج. زښتې]د زښت تانیث. د هغوي اختلافات زښته زیات دي.

لــه ازله برخې راغلې خورې نغښتې
د چا نېکې په طالع شوې د چا زښتې          حافظ

**زښـتیل**:-(ز+خ/ش+ت+ي + ل) [ق.مـص مت]خفـه کـول. شـرمنده کـول. ازار رسوول.

**زښتېينه**:-(ز+خ/ش+تے+ي+نَه) [ق.حمص]خفه کوونه. شرمنده کوونه. ازارونه.

**زښــتېيونکے**:-(ز+ خ/ش+تې+يــو+ن+کے) [ق.فا.ع.مــذ.ج. زښــتېيونکي.مؤ: زښتېونکې] خفه کوونکے. شرمنده کوونکے. ازار رسوونکے.

**زښکله**:- (ز + خ/ ش + کَ + لهَ) وـــــ ښښکله.

**زښه**:- (ز + خَ/ شَ+ه) [اس.مؤ](وـــــ زښا)

**زط**:- (ز + ط) [ع.اس.مذ]د 'جټ' د لفظ معرب د ے. د اسلام په ابتدائ دور د سنده د جټ یا جاټ قوم ډېر خلق د قیدیانو پـه طـور عـراق تـه لېږلـي شـو چې هلتـه میشـته شـو او د جټ پـه ځـا ے "زط" مشـهور شـول وروسـتو پـه دوي کښې ډېر لو ے لو ے عالمان هم تېر شوي دي.

**زعامت**:- (زَ + عا + مَ + ت) [ع.پ.اس.مذ.ج. زعامتونه]سرداري.

**د(تر) ـــــ لاندے**:- اِص.تر سرداري لاندې.

**زعفـران**:- (ز +غ+ ف+را+ن) [ع.اِس.جمع] ګـانګو. ګنګو. مشـهور بـوټے چې ګلونـه ئـې نـارنجي رنګـے او ډېـر خوشـبويه وي. پـه دارو کښـې هـم استعمالېږي او د کټوي په ځنو مصالو کښې هم استعمالېږي. وریژو لـه پرې رنګ (اوخوند) هم ورکوي.

**ـــــ زار**:- (زعفران +زا+ر) هغـه ځـا ے چې زعفران پـه کښـې ډېـر زیات پیدا کېږي او زمکه د زعفران په بوټو ګلونو پټوي.

**ـــــ زرغونېدل**:- اِص،زعفران پیدا کېدل. زعفران راټوکېدل.

لــه چشمانو ئې بـــاران د رحمت اوري
زرغونه ئې په ښهره باندې زعفران شي          رحمٰن بابا

**زعفراني**:- (ز+ع+ف+را+ني) [فا.ص](۱) د زعفرانو د ګل پـه شـان رنـګ لـرونکے. نـارنجي رنګـے. (۲)هغـه دارو چې زعفـران پـه کښـې [illegible]

**زغرلے**:- (ز+غَ+ر+لے) [ق.اِس.ص. مـذ.ج: زغرلي]زره پـوش. چې زغـره ئـې اغوستې وي.

**زغروبے**:- (ز+غ+رو+بے) [ق.اِس.مـذ.ج: زغروبـي](۱)جـابر او زړور سـړے. (۲)تعويز

**زغرووے**:- (ز+غ+رو+وے) [ق.اِس.مـذ.ج: زغرووي.مؤ: زغـرووۍ]د خربـوزو د پتيې څارونکے.

**زغره**:- (ز+غ+رَه) [پ.اِس.مؤ.ج: زغرې]زره. فولادي جېکټ.

که څوک ځان ساتي په زغره په خولونو

دا د خــدا ے ساتنه تېره تـر همه ده خواجه محمد

**زغره ــــ آغوستل**:- اِص،فولادي جيکټ اغوستل.

زغره واغونده ، ملا اوتړه ، په جنګ

دغـه پسه معـرکـه کـوه د تنګ رحمٰن بابا

**ــــ خود کول**:- اِص. زغـره او خود اغوسـتل. د جنګ سامان پـه بـدن لګول. د جنګ تياري کول.

چې ئې قصد د ګذار نهٔ وي

هغه نـــهٔ کا زغــره خود خوشحال

**ــــ غوټه**:- اِص. ډېره سخته او مضبوطه غوټه.

**زغريـالے**:-(ز+غ+ر+يا+لَے)[پ.اِص.مـذ.ج:زغريالي.زغريالیان.مؤ:زغريالۍ.ج زغرياليـانې:](۱)هغـه چـې زغـره ئـې اغوسـتې وي.زره دار . زغـرلے. (۲) جهاز وغيره چې پـه اوسپنه کنبـې پټ وي. پـه اوسپنه محفوظ شـوے. (ا.ق)

**زغږ**:- (ز+غ+ړ) [پ.اِس.مذ]محفوظ.

**ــــ کېدل**:- اِص،محفوظ کېدل.

دا خـــو زهٔ لــــه مشقته تــاته وايم

ګنه ځان له سر نوشته په چا زغږ شي رحمٰن بابا

**زغږد**:- (ز+غ+ړ+د) [ق.اِس.مذ]او ــــ زغرد.

**زغږل**:- (ز+غ+ړ+ل) [پ (ظفر). مص مت]ژغورل. محفوظ کول.

**زغږنځه**:- [او ــــ زوغږنځه]

**زغستل**:- (ز+غ+س+ت+ل) [ق. مص]زغاستل. زغلېدل.

**زغل**:- (ز + غَ + ل) [پ.اِس.مذ]منډه. تېښته.

**ــــ کول**:- اِص. منډه کول. زنلېدل. تښتېدل.

**ــــ کېدل**:- اِص.تښتېدل. زغلېدل.

**زغلا**:- (ز + غَ + لا) [پ.اِس.مؤ]زغل . تېښت. منډه.

**ــــ کول**:- اِص.منډه وهل. زغل کول.

**زغلول**:- (ز+غ+ل+و+ل) [پ. مص مت] په منډه کول. ځغلول. تښتول.

**ــــ پېک دفکر**:- اِص.سوچ فکر کول.

زهٔ چې زغــلومــه پېــک د فکر هر طرف ته

هسې طرف نهٔ مومم چې خلاص وي له بېلتونه حافظ

**زغلولے**:-(ز+غ+ل+ؤ+ لَے) [پ.مف.مذ.ج: زغلولي] تښتولے په منډه کړے.

**زغلونه**:- (ز+غ + ل+ و+ نه) [پ.حمص]په منډه کوونه. تښتونه.

**زغلوونکے**:(ز+غ+ل+و+ن+کَے)[پ.اِس.فاع.مذ.ج:زغلوونکي.مؤ:زغلو ونکې]په منډه کوونکے. منډه ورکوونکے. تښتوونکے.

**زغلېدل**:-(ز+غ+لې+د+ل)[پ.مص لا په منډه تلل. په منډه کېدل. تښتېدل.

**را ــــ**:-اِص.اخوا دېخوا منډې وهل. منډې ترنډې وهل. مجازاً کوښښ کول. سعي کول.

**زغلېدلے**:- (ز + غ + لې + د + لَے) [پ.مف.مذ.ج: زغلېدلي. مؤ: زغلېدلې] په منډه تللے. تښتېدلے.

**زغلېدنه**:-(ز+غَ+لې+د+نَه) [پ.حمص]زغلېدهٔ.تښتېدنه. په منډه. کېدنه.

**زغلېـــــدونکے**:-(ز+غ+لې+دو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.ج:زغلېــــدونکي.مؤ:- زغلېدونکې. منډه کوونکے. تښتېدونکے. تاخ کوونکے.

**زغلېدهٔ**:- (ز + غ + لې + ده) [پ.حمص]او ــــ زغلېدنه.

**زغم**:- (ز+غ+م)[پ.اِس.مذ](۱)صبر.برداشت.تحمل.حوصله (۲) جذب. هضم.

**ــــ کول**:- اِص.زغمل . برداشت کول. حوصله کول.

**ــــ کېدل**:- اِص،صبر کېدل. برداشت کېدل.

**زغمل**:- (ز + غ + م + ل) [پ.مص مت]برداشت کول. تېرول.

روغ عالم ته د زړهٔ حال وئيلے نهٔ شم

کـــه ئې وايمه درد زغملے نهٔ شم خ ، م ، ب

**ــــ کول**:- اِص،زغمل. برداشت کول. تېرول.

ځان بــه واچه وم و سيند ته

څوک به دا هونبره زغمل کا خوشحال

**زغملے**:-(ز+غ+م+لَے)[پ. مف.مـذ.ج: زغملي. مؤ: زغملې (۱)برداشت کړے. (۲)جذب کړے.

**زغمنـاک**:- (زغم+نـا+ک) [پ.اِص.مـذ.مؤ: زغمناکـه]زغم لـرونکے. حوصـله لرونکے.

**زغمنه**:- (ز+ غ + م + نَه) [پ.حمص](۱)برداشت کوونه. (۲) جذب کوونه.

**زغمون**:- (ز+غ+ مو+ ن) [پ.اِس.مذ]حوصله. برداشت. زغم.

**ــــ لرل**:- اِص.حوصله لرل. د برداشت طاقت لرل.

**زغمونکے**:-(ز+غ+مو+ن+کے) [پ.فاع.مـذ.ج: زغمـونکي](۱)برداشت کوونکے. صبر او حوصله کوونکے. (۲)جذب کوونکے.

**زغمونے**:- (ز+غ+ مو+ نے) [پ.فا.مذ.ج: زغموني]او ــــ زغمونکے.

**زغمه**:- (ز + غ + مه) [پ.اِس.مؤ]زغمنه. تحمل. سهول

**زغمېـدل**:-(ز+غ+ مـې+د+ ل) [پ.مـص لا (۱)برداشـت کېـدل. حوصـله کېـدل. (۲)جذب کېدل. هضم کېدل.

**زغمېدلے**:-(ز+غ+مې+د+لَے) [پ.مف.مذ.ج: زغمېدلي] جذب شوے. هضم شوے.

**زغمېدنه**:- (ز+غ+مې +د+ نَه) [پ.حمص]جذب کېدنه. هضم کېدنه.

**زغمېـدونکے**:-(ز+غ+مې+دو+ن+کَے) [پ.مف.مـذ.ج: زغمېـدونکي] (۱)برداشت کېدونکے. (۲) جذب کېدونکے. هضم کېدونکے.

**زغن**:- (زَ+ غَ + ن) [فا.اِس.مذ]کارغهٔ. کاغه. ټپوس. غليواز.

تر دا بل حسرت زشت کار په جهان کوم دے

چې چمن د بلبــــل پـــاتــــوش زغــن تــه سعيد

**زغنځۍ**:- (ز+غ+ن+ ز/ج +ي) [ق.اِص.مؤ]يو قسم بـوټے دے چې د غوايـا نـو د علاج د پاره پکار راځي.

**زغـند**:- (ز+ غ + ن + د) [ف.اِس.مـذ](۱)ټوپ. ترپـه. ترپکـه. دانګـه(۲)دهوسـې دانګه (۳)د پړان اواز.

**زغوپر**:- (ز+ غو+پ+ ر) [ق.اِس.مذ]بلا. اف پېرے.

**ــــ وهل**:- اِص.د پېري سورے پرې کېدل.

**زغوپروهلے**:-(زغـوپر+و+ هٔ+لَـے) [پ.اِس.ص. مـذ]د پېـري سـورے پـرې شـوے. بلاوهلے.

**زغورل**:- (ز+غو+ر+ ل) [پ.مص مت]او ــــ ژغورل.

**زغومے**:- (ز + غو + مے) [ق.اِس.مذ.ج: زغومي]غورندے (بهنور).

**زغونډے**:-(ز+غو+ن+ډے) [پ.اِس.مذ.ج: زغونډے]او ــــ زغبنډے.

**زغوني**:- (ز+ غو+ني) [پ (ظفر).اِس ج. مؤ]ژغونه. د ګډو بزو وېښتهٔ.

**زغه**:- (ز+ غهٔ) [ق.اِس.مذ]د غز ونه. ددې د لښتو نه ټوکرۍ اوکجاوې جوړوي.

**زفـاف**:- (زَ/ز + فـا + ف) [ع.اِس.مـذ](۱)د نـاوې د واده د هلـک (زلمـي) کـور تـه

بوتلنه. (۲) د ناوې او د وادهٔ د زلمي په ورومبنۍ شپه کوروالے کول.
(عموماً شب زفاف (د زفاف شپه) استعمالېږي).

**زفت**:- (ز+ف+ت) [ع.اِس.مذ]د صنوبر د ونې ګوند.

ـــــ **رومي**:- اِص، يو خاص قسم ګوند.

**زفير**:-(ز+في+ر) (۱)وـــــ زفيل (۲) (ع) د خر د اواز اولنۍ حصه. اخرنۍ حصې ته "شهيق" وائي.

**زفيل**:-(ز+في+ل) [ع.اِس.مذ] شپيلے. خصوصاً هغه شپيلے چې په خوله کښې دوه ګوتې ننه باسي او په دې طريقه د تيز شپيلي اواز را اوباسي. (عموماً کونتر بازو سره تعلق (لري) خو په جلسو او په سنيما ګانو تيټرونو کښې هم د ورانۍ په طور وهلے شي.

**زقم**:- (ز+ق+م) [اِپ.اِس.مذ]و ـــــ زقوم.

**زقند**:- (ز+ق+ن+د) [فا.اِس.مذ]و ـــــ زغند.

**زقوم**:- (ز+قو+م) [ع.اِس.مذ]مشهور زغن (اغزن) بوټے چې پلنې او ازغنې (اغزنې) پاڼې لري. ميوه ئې تروه وي. پاڼه ئې ترخه وي. (دا به د دوزخيانو خوراک وي) پښتو کښې ورته "زقم" هم وائي.

هغه خلقو نه چې تراخهٔ دي د هجران په زخمت
کلي خوارهٔ پرې زقوم زهر حلوا بهٔ نهٔ ش — حافظ

**زقه**:- (ز+ق+هَ) [ع.مو] (۱) ګوټۍ. هغه څيز چې ماشوم ته د پيدا کېدو نه پس ورکولے شي. (۲) هغه خوراکه (چينجے مينجے) چې مرغۍ ئې په مخوکه کښې راوړي او ورو بچو ته ئې ورکوي. (۳) هغه دارو ته هم وائي کوم چې مور خپلو پيو سره ګډ کړي او بچي ته ئې ورکوي.

**زک**:- (ز+ک) [ع.]د کمزور ورتيا له کبله واړه واړه قدمونه اخېستل او ورو ورو تلل.

**زک**:- (ز+ک) [ار.اس.مذ] (۱)ماتے. شکست. (۲) نقصان. ضرر.

ـــــ **رسوول**:- اِص. (ار.مص) (۱) ماتے ورکول. شکست ورکول. (۲) نقصان. ضرر رسوول.

ـــــ **موندل**:- اص. (ار.مص) (۱) شکست خوړل ماتے موندل. (۲) نقصان يا ضرر رسېدل.

**زک**:- (ز+ک) [اس.مذ.ج. زکان] (۱) د خرمنې ګوډے چې ګوړې په کښې جمع کوي. (۲) شناز. مشک.

**زکات**:-(ز+کا+ت) [ع.اِس.مذ.ج. زکاتونه]د مال پيسو، کالو او څاروو وغېره شرعي ټيکس.

نهٔ ئې نمونځ د جنازې نهٔ ئې امام شته
نهٔ زکوٰة د سر سايه نهٔ د زړهٔ تراه — خوشحال

ـــــ **د حسن**:- اص. (ف.تر. مذ) د شاعرۍ (ياد عاشقانو) اصطلاح ده. مراد ترې بوسه کو کې ده.

ـــــ **قبلول**:- اص. د غريب او مستحق سړي يا ښځې څهٔ رقم وغېره زکات په طور اخېستل.

ـــــ **ورکول**:- اص. په خپل مال کښې شرعي ټيکس ادا کول.

زهٔ خوشحال که له تا خواست کړم مستحق يم
خلهٔ زکوٰة راکړه د حسن له نصابه

**زکام**:- (ز+کا+م) [ع.اس.مذ] تود سوړ کېدل. يخنۍ يا ساړه وهل.

ـــــ **پخېدل**:- اِص، (عپ.تر. مص)د نزلې (د پوزې نه را بهېدونکې) او بهٔ بندېدل او وچېدل. نزله پخېدل.

ـــــ **کېدل يا وهل**:- (عپ.تر.مص) د زکام مرض لګېدل. تود سوړ کېدل. يخنۍ وهل. نزله کېدل.

**زکانه**:-(ز+کا+نهٔ) [ق.اِس.مؤ]يو قسم بيماري چې په بدن باندې شنهٔ خالونه او داغونه پيدا شي. شين شين ټکے هم ورته وائي.

ـــــ **کېدل**:- اص، د شين ټکي بيماري کېدل.

**زکاوت**:- (ز+کا+و+ت) [ع.اِس.مذ]نيکي. پاکيزګي.

**زکات**:- (ز+کا+ت) [ع.اِس]دو ـــــ زکات.

**زکبورے**:- (ز+ک+بو+رے) [ق.اِس.مذ]د زرکې بچے.

**زکريا**:-(ز+کَ+ر+يا) [ع.اِس معرفه. مذ]د يو پيغمبر نوم دے چې د دښمنانو نه د ونې په ډډ کښې پټ شوے وهٔ خو د ښمنانو هغه ونه او ځير له او دغه شان حضرت زکريا هم په کښې او ځيرلے شو.

زکريا ئې په اره پره پاره کړ
خاموش نهٔ شهٔ له اذکارو له اورادو — حافظ

**زکندن**:-(ز+ک+ن+د+ن) [اِپ.اِس.مذ]ځکندن. ځنکدن. د ژوند اخري سلګۍ. ځان کندن.

ـــــ **کېدل**:- اص. د ژوند اخري ساعت کېدل. ځنکدن کېدل.

**زکات**:-(ز+کا+ت) [ع.اِس.مذ] (لفظي معانې پاکوونه. طاهر کوونه ده) په شرعي اصطلاح کښې هغې صدقې خيرات ته وائي کوم چې فرض دے او مالداره شته من خلق د خپل مال او دولت نه هر کال په يوه خاص شرح (څلويښتمه برخه) اوباسي او په قران کښې ذکر شوي مدونو کښې خرڅ کولے شي. زکات هم ليکلے شي. په قران مجيد کښې زکوٰة ليکلے کېږي.

ـــــ **ورکول ادا کول**:- اص، (عپ.تر. مص)د زکوٰة رقم مستحقه خلقو (يا اسلامي حکومت) له ورکول.

**زکه**:- (ز+کهَ) [اِپ.حرف]و ـــــ ځکه.

**زکي**:-(ز+کي) [ع.صف.مذ. مو.زکيهَ] (۱)پاک صفا. نيک او پاک سړے يا ښځه (زکيه) (۲) هغه سړے يا ښځه (زکيه) چا چې د خپل مال زکات ادا کړے وي.

مدني وٗ ، هم مکي وٗ
مطهر طاهر زکي وٗ — حافظ

**زګ**:- (ز+ګ) [اِپ.ص]و ـــــ زيږ.

**زګال**:- (ز+ګا+ل) [فا.اِس.مذ]و ـــــ زغال.

**زګال**:- (ز+ګا+ل) [ق.اِس.مذ]په شوملو وغېره کښې چوري شوې ډوډۍ. ځګال هم ورته وائي.

**زګروا**:-(ز+ګ+وا) [اِپ.اِس.مذ]زياد. زګېروے. زېرګے.

عاشقي ځنې په ګور کړل
څوک پراتهٔ دي په ګروا — خوشحال

**زګول**:- (ز+ګ+و+ل) [اِپ.مص مت]ځګ ترينه رايستل. ځګول.

**زګونه**:- (ز+ګ+وٗ+نَه) [اِپ.حمص]ځګ ترې رايستنه. ځګونه.

**زګوونکے**:-(ز+ګ+وو+ن+کَے) [اِپ.فاع. مذ.ج. زګوونکي. مؤ: زګوونکې] ځګوونکے. ځګ ترې رايستونکے.

**زګېدل**:-(ز+ګې+د+ل)[اِپ.مص لا]اوبو، صابون يا مستو نه ځګ راويستل. ځګېدل.

**زګېدلے**:-(ز+ګې+د+لَے) [اِپ.مف.مذ.ج. زګېدلي.مؤ: زګېدلې] ځګ کړے شوے. ځګېدلے.

**زګېدنه**:- (ز+ګې+د+نَه) [اِپ.حمص]ځګ کوونه. ځګېدنه.

**زګېدونکے**:-(ز+ګې+دو+ن+کَے)[اِپ.مف.مذ.ج.زګېدونکي.مؤ: زګېدونکې] ځګ کوونکے.

**زګېرل**:- (ز+ګې+ر+ل) [ق.مص مت] جابې ورکول.

**زګېروے**:- (ز+ګې++و+ے) [اِپ.اِس.مذ.ج. زګېروي]زګروا. فرياد.

ددې هسې رنګــه رنځ عــلاج هم دا دے
چې زګېږوے مې په طبيب اظهاره نۀ شي        خوشحال

**ـــــ کول**:- اص.فرياد کول.

**زګېړل**:-(ز+ګې+ړ+ل) [ق. مص مت](۱)د ساز د سرونو اواز برابرول. (۲)ګړۍ ته چابي ورکول.

**زل**:- (ز+ل) [ق.اس.مذ] (۱)ځل.وار. (۲) جلړيا تڼدې بيماری. (۳) د کتاره وار.

**زل**:-(ز+ل) [ع.مذ](۱)په ختېه وغېره کښې ښوئېدل. (۲) لغزش. په خبره کښې خفا کېدل.

**زلابيه**:- (ز+لا+بيه) (ع.اس) ځليبي. ځلوبَی. (مشهوره مټيای)

**زلات**:- (ز+لا+ت) [ع. د زَل جمع](۱)لغزشونه. خوئېدن(۲)غلطی.

**زلازل**:- (ز+لا+ز+ل) [ع:د "زلزله" جمع ده]و ـــــ زلزله.

**زلال**:- (ز+لا+ل) [ع.ص]صفا. رڼې پاکيزه (اوبۀ)

**زلانـــد**:-(ز+لا+ن+د)[پ.ص.مـــذ .مؤ:زلانـــده.ج: زلانـــدې] ځلانـــد .ځلنـــد. برېښېدونکے.

**زلپې**:- (ز+ل+پ+ې) [ق.اس.مؤ]د زنځير کونډه. زلفی.

**زلت**:- (زَ+لَ+ت) [ع.اس.مذ]خوئيدنه. مجازاً خطا کېدل.

آدم خلاص شۀ له زلته
ستا د نـــور له برکته        حافظ

**زلخوړتوب**:-(ز+ل+خو+ګ/ژ+تو+ب)[ق.اس.مذ]زلخوړتيا.ډېرزيات خواهش.

**زلخوړتيا**:- (ز+ل+خو+ګ/ژ+ت+يا) [ق.اس.مؤ]و ط زلخوړتوب.

**زلخـوړے**:- (ز+ل+خـو+ګـ/ژے) [ق.اس.مذ]خواهشـمند. شوقين.خصوصـاً د غوښې شوقين چې ډېره موده ئې نۀ وي خوړلې.

**زلخوړي**:- (ز+ل+خو+ګ ژ+ي) [ق.اس.مؤ]ډېر زيات خواهش يا شوق.

**زلزال**:- (زِ+ل+زا+ل) [ع.اس.مذ]زلزله.

د حـافظ تـن کـه پـه سـر پـورې لبـدۀ شـي
زرۀ ئـې تـار پـه تـار د هجـر لـه زلزالـه

**زلزلـه**:-(ز+ل+ز+لَـه) [ع.مـؤ.ج. زلزلـې]دَ زمکـې خوځېـدل. (د زمکـې د لانـدې (يعني دننه) يشيدونکې لاوه پرته ده چې هغه په ډېر جوش کښې راشي او بخارات ترې نه پورته شي نودغه لاوه او بخارات د يو ځـاے نه بل ځـاے ته مخه وکړي او په دې حرکت د زمکې برنۍ سطح (مخ) ولړزوي).

**ـــــ راتلـل**:-اص. (۱)د زمکـې خوځېـدل.د زمکـې لړزېـدل.(۲)سـخت ناقلارے پېدا کېدل. اړے ګړے جوړېدل. ډېر زيات متـاثره کېـدل (خصوصاً يرې اخيستل).

**ـــــ راوستل**:- اص. ويره پېدا کول. سخت ناقلارے پېدا کـول. (ملک کښـې) اړے ګړے جوړول (پښتو کښې دتاکيد په طور زَلزَل هم استعمالېږي.

**زلښت**:- (ز+ل+خ/ش+ت) [پ.ص.مذ]ځلا. برېښ. چمک. ځلښت.

**زلـف**:- (ز+ل+ف) [ف.اس.مـذ](۱)اصـلاً د دې معنـې "د شـپې څـۀ برخـه" وي. (۲)(مجازاً) د سر د وېښتو هغه لچې چې دواړو غوږونو سره د مخ نه يو خوا بـل خوا رازوړنـدې وي. څڼې. څوڼې. (۳)د زنانـاو هغـه کمڅۍ چې دواړو غوږونو سره مخکښې رازوړندې وي (دا کمڅۍ شوې وي)
ياد ګيرنه:- هر کله چه دا "زلـف" هميشـه دوه وی. ځکه په پښـتو کښـې د جمع په طور"زلفې" (يا زلفينې) استعمالېږي. صرف په پور کړې مرکبـاتو کښې "زلف" (واحد) هم راځي).

**ـــــ پر ېښودل**:- اص. د غوږونو د پاسه وېښتۀ لوئيدوته پرېښـودل چې زلفې يا څڼې ترې جوړې شي. څڼې پرېښودل.

**زلفې جوړول**:- اص. زلفې ول په ول کول يا اراسته کول.

**ـــــ خورول**:-اص. زلفې باد ته پرانستل چې په باد خوزي. زلفې پرېشانه کول.

**ـــــ د شپې**:- اص. استعاره له تيرې. تيارۀ.

**ـــــ دوتـا**:- اص. ول ول زلفې. تـاو را تـاو زلفې چې برغـه تـاو ورلـه ورکړے شوے وي.

**ـــــ شب**:- اص. و ـــــ زلفې د شپې.

**ـــــ ماتې ماتې**:- اص.رتا

**ـــــ کېدل**:- اص.جابر کېدل. ظلم کول.

**زلنه**:- (ج. زلنه ګان) ډېر سخت . شدت والا.

**زلو**:- (ز + لو) [فا.اس.مؤ]ژوري.جوري.

**زلوبي**:- (ز + لو + ب + یٔ) [پ.اس.مؤ]جلبيي. مشهوره مټهای. ځلوبي.

**زلوچه**:-(ز + لو + چَه) [ق.اس.مؤ.ج. زلوچي]زلېچه. قالينچه. ورکوټې قالين.

پـــــه مسند زلـــوچـــوئے خـانان نهٔ کا

هغه ذوق خوشي خدا چې په حصير کړم     سکندر خان خټک

**زله**:-(زَ + له) [ع.اس.مؤ]پاتې شوې ډوډۍ يا خوراک. پس خورده. (په مرکباتو کښې استعمالېږي)

**ـــــ ربا**:-(زله+ر+با) [عف. تر] پاتے شوې ډوډۍ يا خوراک تښتوونکے. پس خورده خور. هغه ځيزونه خړونکے کوم چه د نورو د خوراک نه پاتے شي. (۲)د نورو د کار نه فائده اخستونکے. خوشه چين.

**زله**:- (ز + لَه) [ق.ص،ستړے ستومانه. بد حاله]

**ـــــ کول**:- اص،ستړے کول. ستو مانه کول.

**زله**:- (زَ + له) [پ (ظرف).اس.مذ]کيرړے.

**زلبيا**:- (زَ + لی + با) [ع.اس]و ـــــ زلابيه

**زلېبيا**:- (زَ + لی + ب + يا) و ـــــ زلابيه

**زلېچه**:- (ز + لے + چَه) [ق.اس.مؤ.ج. لېچې]و ـــــ زلوچه

**زليخا**:- (ز + لَي+ خا يا زَ + لی + خا) [ع.اس.مع.مؤ]د مصر د يو حاکم ښځه. چې په يوسف عليه السلام مئينه شوې وه خو چې د حضرت يوسف عليه السلام نه ئې مطلب پوره نه شو نو تهمت ئې پرې ولګاوهٔ او په قيد کښې واچولے شو. اخر حضرت يوسف عليه السلام د قيد خانې نه را ووتو او د مصر حاکم مقرر کړے شو. دا قصه په قران مجيد کښې په تفصيل سره راغلې ده او ډېرو ملکونو شاعرانو په خپلو ژبو کښې منظومه کړې ده.

ازلي پـرې عنايت د اسلام شوے

د يوسف مينه سبب شوه زلېخا ته     حافظ

**ـــــ غوندې شيدا**:-د زلېخا په شان مئينه. زليخا غوندې عاشقه.

**زلېدل**:- (ز+لې+ د+ ل) [پ.مص.لا]و ـــــ ځلېدل

**زلينه**:-(ز+ل+ي+نَه) [ق.اس.مؤ.ج. زليني] نا پاکه او بد کرداره ښځه. لولی.

**ـــــ کېدل**:ـ اص. بد کرداره کېدل. ناپاکه کېدل.

**زم**:- (ز + م) [پ. ]مخفف د (زه + هم).

**زم**:- (ز + م) [ق.اس.مذ.ج. زمونه]پرهر. ژوبل.

**زم**:- (زَ + م) [پ (ظرف). اس.مذ] (۱) يخه او تېزه هوا. زول. (۲)لاړېچن سرے. (۳) د ډيوې باتی. (۴) دجيحون درياب په غاړه د غزنوي دور يو ښار چې اوس وران شوے دے.

**زما**:- (ز+ ما) [پ. صيغه متکلم ] ماسره تعلق لرونکے.

**زمام**:- (ز+ما+م) يا (ز+ما+م) [ع.اس.مذ]واګه. هغه پټه چې د اس د قابو ساتلو د پاره قيفي سره تړلے وي. (ښښتو کښے عموماً جمع:واګي استعمالېږي)

**ـــــ زمام په لاس کښې کول**:- (د څهٔ)واګے په لاس کښې قابو کول. واک اختيار په خپل لاس کښې اخېستل.

**زمام دار**:- (زمام +دا+ر) [فا.اس.ص.مذ.ج. زمام داران] مؤ: زمام داره. سرادار. د اختيار خاوند. واکدار.

**ـــــ داري**:- (ـــــ + دا + ری) [پ تر.اس.مؤ] سرداري.واکداري.

**زمان**:- (ز+ما+ن) [عف.اس.مذ](۱) زمانه. دور. وخت. موده. (۲)ګړی. ساعت. لږ شان وخت.

يـو زمـــان مې د زړهٔ مراد مونډلے نهٔ دے

پيدا کړې خدا ے په اصل کښې نامراد يم     رحمٰن بابا

**په ـــــ** :- اص،(۱)هره ګړی. هر وخت. (۲) بيا بيا.

**زمان شاه**:- (اس.مع. مذ) د احمد شاه ابدالي (دراني) نمسے او د تيمور شاه زوے. په ۱۷۹۳ کښې د پلار په مرګ په تخت کښيناستو. دې په ډيلې حمله کولو د پاره تر لاهوره راغلے وهٔ خو په خپل ملک کښې ئې ګړبړ پيدا شوځکه بير ته لاړو.

**زمانه**:-(ز+ما+نه) [عف.اس.مؤ.ج. زمانې] (۱) دور. عهد. قرن. (۲) موده. وخت. (۳) حالات. فضا. ماحول. (۴) ګړی.

**ـــــ اړخ واړه وه**:-ا ص. حالات بدل شوې. نوے دور شروع شو. انقلاب راغے.

**ـــــ اړولي کېدل**:- اص. زمانه په بل رنګ کېدل. حالات بدلېدل. انقلاب راتلل.

**ـــــ اوړېدل يا اوښتل**: (پرې) په يوه خبره يا واقعه ډېر وخت يا وختونه اوړېدل. خبره يا واقعه ډېره زړه کېدل.

**ـــــ بدلېدل**:- اص. زمانه په بل رنګ کېدل. حالات بدلېدل انقلاب راتلل.

**ـــــ په يو رنګ/ حال نه پاتې کېږي**:-هميشه حالات يو شان نه وي. حالات بدلېږي رابدلېږي. کله ښهٔ شي کله بد شي. کله ګټه کله بائلل. کله ښادي کله غم ـ کله روغ کله ناروغه. کله شته من کله فقير وي.

**ـــــ راتلل**:- اص(۱) وخت راتلل. دوران راتلل. (۲) درواج يا دود دستور جاري کېدل.

**ـــــ زړه/ پخواني**:-اص. پخوا. تيره شوې زمانه. بعيده ماضي. پخواني وختونه.

**ـــــ مخالفه (ده)**:- اص. (۱)حالات (د چا) د خواهش او ضرورت سره سمون نه خوري. (۲)خلق ئې مخالف دي.

**ـــــ موافقه (ده)**:- (۱) حالات (دچا) د خواهش يا ضرورت سره سم دي. (۲)خلق ئې مرستيال دي. نازکه (ده) حالات نازک دي. وخت په ډېر احتياط سره تېرول پکار دي. چې عزت ابرو بچ کړے شي.

**ـــــ وشوه**:- ډېر وخت پرې تېر شو. ډېره موده تېره شوه. ډېره پخوانۍ خبره يا واقعه ده.

**ـــــ وشوې**:-(په څهٔ واقعه يا خبره) ډېر وختونه واوړېدل. ډېره زياته پخوانۍ يا زړهٔ خبره ده.

**ـــــ ئې لېدلې ده**:-قسم قسم حالات او واقعات ئې لېدلي دي. ډېر تجربه کار دے.

**تر زمانو پورې**:- تر ډېرو زياتو دورونو پورې. تر ډېرو ډېرو راتلونکي وختونو پورې. تر ډېرو ډېرو عهدونو پورې.

**د زمانې ګردش**:-د حالاتو بدلېدنه. د حالاتو په بل رنګ کېدنه. انقلاب د زمانې (عموماً په بد مفهوم کښې استعمالېږي)

**د زمانې په ګردش کښې راتلل**:-د زمانې د انقلاب (بدلېدلو) په وجه حالات خرابېدل. په مصيبت يا تکليف کښې راګېرېدل.

**د زمانې چال/ دستور/روش/رخ (ته کتل)**:ـ د خلقو چال يا د ستور يا روش سره سم ژوند تېرول. د حالاتو د تقاضې مطابق عمل کول.

**دزمانو راسې**:- د ډېرو وختونو راسې. د پخواني وختونو راسې.

**د زمانې ياد( درستې)زمانې**:- د ټولې دنيا. په ټوله دنيا کښې.

ما د يار په بېلتانهٔ کښې دے ليدلے

کـه دانا زما د زمانې وي مبدل شي     رحمٰن بابا

**د ـــــ هوا**:- د زمانې چال. د خلقو دود دستور. د وخت حالات.

**د فلانې ـــــ يا د فلانې په زمانه کښې**:- د چا خاص مشهور سړي د ژوند يا د حکومت دوران. (لکه د سلطان محمود باچا په زمانه کښې)

**زمونږ ـــــ**:- (۱)موجوده زمانه. موجوده دور. (۲)د زوړ سړي د ژوند اولنے دور.

**له زمانو، زمانو راسې**:-اص. د ډېر ډېر پخواني وختونو راسې. يو کار يا پېښنه چې ډېرې زمانې دورونه، عهدونه، قرنونه پرې تېرې شوې دي.

**نوې زمانه**:- اص. نوے انداز. نوې طور طریقې. نوې عادتونه خصلتونه.

**زمانه جاهلیت**:- (زمانه+ جا+ه+لي+ يَت) [فا. اس ص. مؤ]په عربو کښې د اسلام د راتلو نه وړومبے وخت.

**زمانه حال**:. (زمانه+حا+ل) [فا. اس ص. مؤ]اوسنی زمانه. حاضروخت کوم چې تېر برې. روان وخت.

**زمانه ساز**:- (زمانه+سا+ز) [فا. اس ص. مذ. مؤ: زمانه سازه] لباسي وخت شړونکے. درغل. تش د غلے لم لباس کوونکے. خود مطلبه. خوشامند ګرے.

**زمانه سازي**:- (زمانه + سا + ز + ي) [فا. اس. مؤ](۱)ظاهرداري. (۲) د نیا داري. (۳) خوشامنده. (۴) مکاري.زمانه ــــ سازی (کول)درغلي. وخت شړنه. خود مطلبي. ظاهري لم لباس. چل ول. خوشامند ګري. خوشامند ګر توب.

**زمانۀ ماضي**:-(زمانه+ ما + ضي) [فا. اس ص. مؤ]تیره شوې زمانه. تېر وخت یا وختونه.

**زمانه مستقبل**:-(زمانه+م+س+تَ+ق+ب+ل)[فا. اس ص. مؤ]راتلونکې زمانه. هغه وخت (یا وختونه) چې راروان دي. راتلونکے وخت (یا وختونه).

**زمانه استقبال** (ا+ س + ت + ق + با + ل) [هم ورته وائي.]

**زمانی**:-(ز+ما+نی) [ف تر](۱)چې زمانې یاوخت سره تعلق لري.(۲) دحاضر وخت.

**زمبر**:-(ز+م +ب+ر) [ق. اس. مذ](۱) ژمبر. اوچت اواز. (۲) ګڼ او ګور ځنګل. (۳) بد زبانه ښځه.

**ـــ کښل**:- اص. ډېر اوچت اواز ایستل.

**زمبک**:- (ز+م+ب+ ک) [پ. اس. مذ]و ــــ زنبق.

**زمبل**:- (ز+م+ب+ل) [پ. مص مت]و ــــ ځنبل.

**زمبور**:-(زَ+م+ بو + ر) [فا. اس. مذ. ج زمبوران](۱)امبور. (۲)لویه سره مچی.

**زمبولي**:- (ز + م +بو+ل+ئ) [ق. اس. مؤ. ج. زمبولې](۱)ورکوټې بورې. (۲) پانې لرونکے ځانګه.

**زمبولے**:- (ز + م + بو + لے) [پ (ظفر). اس. مذ]سترے ستومانه. بد حاله.

**زمبه**:- (زَ + م + ب + ه) [ق. ص](۱)ګڼ ویښتهٔ.(۲)دسترګې اشاره.

**زمبه**:- (زَ + م + بهٔ) [اس. مو. ج. زمبې]د سترګې اشاره.

**زمبے**:- (زَ + م + بَے) [ق. اس. مذ]زنبې. دسترګې اشاره. سترګه وهل.

**زمبیل**:- (ز + م + بې + ل) [پ. اس. مذ]و ــــ زنبیل.

**زمچ**:- (ز + م + چ) [پ (ظفر). اس. مذ]خاورې. پټکړے.

**زمر**:- (ز+م+ ر) [ع. اس. ج. وا: زمره](۱)مترق جماعتونه(۲)ډېر ټولي اوډلې. (۳) د قران شریف د یو سورۀ نوم.

**زمربچے**:- (ز+م+ر+ب+ چے) [اَس. مذ. ج. بچي]د زمري بچے. زمر کټے.

**زمرد**:-(ز+م+ر+د) [فا. اس. مذ] (۱)د شین رنګ مشهور قیمتي کانړے چې په ګوتو یا نورو کالو کښې استعمالېږي. ځني خلق "زمروت یا زمرود "هم وائی. (وئیلے شي چې مار ددې کانړي په لیدو ړوند شي).

**زمرک**:- (ز + م + ر +ک) [پ. ص. مذ]بهادر. مېړنے. تکړه.

**زمرکټے**:- (ز+م+ر+ک+ ټے) [پ تر. اس. مذ. ج: کټي](۱)د زمري بچے. د زمري زوے. زمري بچے. (۲)تکړه. مېړنے. زړور. بهادر.

**زمرکټي**:- (ز + م + ر + کَ + ټَ + ئ) [پ تر. اس. مؤ](۱)د زمري بچی. (۲)تکړه. مېړنی. زړوره. بهادره.

**زمرلاے**:- (ز+م +ر+ لا+ ے) [ق. اس. مذ]البنکر. عسکر.

**زمرلے**:- (ز + م + ر + لَے) [پ. ص. مذ]و ــــ زمریالے.

**زمره**:- (ز+م+ ر+ ه) [ع. اس. مؤ]ډله. ټولے. د خلقو غونډه.

د عشاقو په زمره ئې نسبت کوم دے
چې نظر څوک په عوض د حسنات کا — سعید

**په ــــ کښې**:- اص، (۱) په ډله کښې. دټولي نه. (۲) په لړ کښې. دې نسبت سره.

د مقبولو په زمره به سعید شمار شي
په حساب که د سمیرغ ورشي کلاغ — سعید

**زمری**:- (ز + م + ر + ئ) [پ. اس. مؤ]مذ: زمرے. مجازاً بهادره ښځه.

زړۀ مې یوړ یو مزرۍ — خوشحال

**زمرے**:- (ز+م+ر+ے) [پ. اس. مذ. ج. زمري. زمریان. مؤ ــــ و: زمرۍ. ج. زمریانې](۱)د ځنګل بادشاه شېر. (۲)بهادر. زړور (۳) د اسامن په دولس برجونو کښې یو برج. اسد.

**ــــ د برېتونه نیول**:- اص. زمرے د غوږه نېول. د هغه سړي په حقله وئیلے شي څوک چې ډېر خرش پرش او قهریدلے تهریدلے وي. معمولي شان خبره هم نه شي برداشت کولے.

**ــــ د غوږه نېول**:- اص، د ډېر قهر یا غصې په حالت کښې دے. څوک چې خرش پرش وي او قهریدلے قهریدلے وي. معمولي شان خبره هم نه شي برداشت کولے. هغه ته طنزاً وئیلے شي.

**ــــ کول**:- اص. د زمري په شان زړه ورکول. دلاور کول. حوصله ورکول.

د مـــږګانو پـــه پنجه مې زړۀ وکــــاږي
خداے د ترکو مشې سترګې کړې زمرۍ — رحمٰن بابا

**د زمري برخه**:- ټول. هر څه. تمام ثیز. (وائي چې یو ځل زمري. میلو او لومبړې په شریکه یو نیل ګاو ښکار کړو او میلو ته ئې ووې چې دا ښکار وویشه. میلو نیل ګاؤ درې برخې کړو. زمري ته ئې ووې چه دا لویه برخه ستا شوه. دا لړه برخه زما شوه او دا د ټولو نه کمه برخه د لومبړې شوه. زمري میلو په پنجه وواهه او زخمي یا مړ ئې کړو. بیا ئې لومبړې ته ووې چه ته ئې ویش وکه. هغې ووې چې دا لویه برخه ستا شوه چې په ښکار کولو کښې ستا ډېر لاس وۀ. دا دویمه برخه هم ستاشوه ځکه چه ته د ځنګل باچا ئې او دا دریمه برخه هم ستا شوه. که په خپله ئې خورې که چاله ئې ورکوې. زمري ترې تپوس وکړو چې دا ښکلے تقسیم درته چا ښودلے دے؟ لومبړې ووې د میلو دې انجام. (دا واقعه بل شان ته هم بیان شوې ده).

**د زمري په خله کښې**:- اِص. چې زمري نیولے وي. مطلب دا چې ډېر په تکلیف کښې وي.

تــهٔ چې خوب غوارې پــه عشق کې راته وایه
کوم چا کړے د زمري په خُله کښې خوب دے — رحمٰن بابا

**د ازمري لکۍ له ګوتې وروړل**:- داسې حرکت کول چه ځان ته یو لوے مصیبت پیش کړي.

**دازمري میاشت**:-اص. د اسمان برجونو په حساب. د کال دولس میاشتې هم د برجونو په نوم تقسیم شوې دي. د زمري میاشت. د څلېرویشتم جولائی نه تر درویشتم اګست پورې وي.

**زرمیالے**:-(زر+مي+ا+لے) [ق. ص. مذ](۱) سړدي. سخته یخني. ډېر یخوالے (۲) پرخه. شبنم. (۳) دوزخ. زمهریر.

**زمزم**:-(ز+م+ز+م)[ع. اس. مذ] په مکه معظمه کښې بیت الله ته نزدې یو کوهے چې حاجیان ددې اوبه د تبرک د پاره وړي. دا اوبه په هغه وخت کښې راوتې وې کله چې حضرت ابراهیم علیه السلام خپل ټبر حضرت حاجره او زوے حضرت اسمٰعیل علیه السلام د شام نه راوستل او د مکې په خوا کښې ئې په خوشي بېدې بېدیا کښې پرېښودل. په دې وجه بې اب وګیاه زمکه کښې الله پاک دد غو اوبو

چینه پیدا کړه. ددې نه پس د غلته ابادي شروع شوه.

خونــد د لــبو او د چاه زنخدان ئې

ئې قطر ۲۶۴۸میله کم شوے دے۔ څکه هلته ئې د زمکې (یعني د ثقل)
کشش هم لږ زیات دے. دا لکه د نورو سیارو د نمر نه چاپیره ګرځي او

[illegible]

**زمزمــه**:-(زَ+م + زَ+ مـهَ) [ف.اس.مـؤ.ج زمزمـې] (۱) پـه نـري اواز ورو ورو سـندره وئیـل. (۲) هغـه خـاص الفـاظ چې اتـش پرسـت ئې د عبـادت پـه وخـت یـا دخوراک په وخت وائي. په دې کښې خولـه بند وي او اواز د پوزې پـه لار راووځي- (۳) مجازاً هغه نرے اواز چې مطلب ئې واضح نه وي. (۴) د لرې نه راتلونکے اواز چې د مچانو د بنګا په شان وي. (۵) سندره. نغمه. سرود. د خوشحالۍ نغمه. (۶) د زمري اواز (د لرې نه)-

چې پادښ مې زمزمه په زړۀ دنې کا
چې رایـــاد یـــارو د یـار بهـارومې کـا   سـعید خټک

**ـــــ پرداز (کېدل. کول. دے)**. [زمزمه+پ+ر+دا+ز] (ف تر. مذ. مو: پرداز ه ج مؤ:- پردازې) په سندرو وئیلو کښې مشغول. د ترانې په وینا کښې مشغول. په سندرو سر-

**ـــــ پردازي**:- ا.ص. د زمزمې وئیل. د سندرو وئیل. د ترانې وئیل.

**ـــــ پیرا. (کول. کېدل. دے)**. (زمزمه +پَے+را (فا تر. مذ. مؤ) دسندرو وئیلو پـه کار کښـې مشـغول. سـندرې ویـونکے. د ترانـې پـه وئیلـو کښـې مشـغول. پـه سندرو سر.

**ـــــ پیرای**:- اص. (ف. تر) د زمزمې وئیل. د سندرو وینا.

**ـــــ سرا**:- (زمزمه +س+را) [ف.تر. مذ مؤ] د زمزمې په وئیلو کښـې مشـغول . د سندرې په وئیلو کښې یا د ترانې په وئیلو کښې مشغول- په سندرو سر.

**ـــــ سنج (کېدل. کول**:- [زمزمـه+س+ن+ج] (فـتر. مذ. مؤ: سنجه جمـع سنجې) سندرې ویونکے. د سندرو پـه وئیلـو کښـې مشـعول. د سندرو وئیلو پـه حالت کښې- د ترانې په وینا کښې مشغول- په سندرو سر.

**ـــــ سنجي**:- اص. (ف. تر) د زمزمې وئیل. د سندرو دنیا. د ترانې وینا.

**ـــــ ګوی**:-(زمزمـه+ګو+ی) [ف تر. مذ مو] زمزمـه ویـونکے. سندرے ویـونکے- سندر غاړے.

**زمزمه**:- (ز+م +ز+مـه) [ع.اِس.مـؤ] (۱) د وریځـو د ګـرزا پـه شـان اواز. (۲) د زمـري اواز. (۳) د بدبه.

د جبحون ؤ په دُره سره وهلے
تر ابده ئې قراره زمزمه ده   خواجه محمد بنګش

**زمزمی**:- (ز+م+ز+م+ی) [ع.اِس.مـؤ] د ټیم وغېـره نـه جـوړ هغـه واړۀ ډبلـۍ- چې حاجیان په کښې د زمزم اوبۀ ځان سره بیرته خپل وطن ته وړي.

**زمستان**:-(ز+م+س+ تَا+ن) [ف.اس.مذ] ژمے جمے- د ژمي/ جمي موسم د یخني موسم. (زم په اصل کښې ژمي ته وائي. او ستان ئې ظرف دے) خوزمـه سختې ګرمۍ ته وائي. د نمرب تاؤ.

څـوک لـه اوره شي اوبۀ پېدا کولے
د له اوړي پېدا کړے زمستان دے   رحمٰن بابا

**زمستاني**:- (ز+ م + س + تا + ني) [ف تر ] زمستان یعني ژمي سره متعلق. ژمي سره تړلے. د ژمي-

**زم طلاق**:-(ز+ م + ط +لا+ ق) [پ. اس ص. مذ] (دزن طلاقي عوامي تلفظ)
و ـــــ زن طلاق-

**زمکه**:- (ز+م+ کـه) [اس.مـو.ج: زمکـې] (۱) د زمکـې مـخ چې مـونږ پرې اوسـو. (۲) هغه کُره چې لکه د نورو ګڼو سیارو د نمر نه چاپیره چورلي او د خپـل محـور نه هم چاپیره ګرځي/ ددې کرې قطر تقریباً اته زره میله دے او محیط ئې تقریباً پنځه ویشت زره میله قطبینو سره، دا لږ چپړے شوے دے- هلتـه

**ـــــ کښیناستل**:-اص. د فطري وجوهاتو له کبله د زمکې د ځنې برخې سطحې لاندې کېدل.

**ـــــ ګرول**:- اص. شرمنده کېدل. خجل کېدل.

**ـــــ ګلناره کېدل**:- اص. په سرو ګلونو زمکه سره ښکارېدل. د سپرلي د ګلونو غوړېدل.

**ـــــ لاندې کول(چاڼه)**:- اص. د بل د ملکیت په زمکه ناجائزه قبضه کول.

**زمکې له بوسه ورکول**:- اص. وـــــ زمکه ښکلول.

**زمکه متره کول**:- اص. زمکه نایا به کول.

تا چې هسې بې نیازي د خان توبنه کړه
پــه عاشق دې د خندا زمکه متره کړه

**ـــــ نیول**:-اص. (۱) پـه زمکه کرکرونده شروع کـول. (۲) (دچاپه) زمکـه قبضـه کول.

**ـــــ وچاودې او زهٔ پـه کښې ننه وتـې**:- اص. د بې کچـه شرمنده کیـدو پـه موقـع وئیلې شي. سخت ملامته کېدل.

**زمکې او خوړ**:- اص. خاورې شو. نیست ونابودشو.

**ـــــ وخوړ که اسمان ته وخوت**:- اص. چې یو څیز خلاف توقع غـېب شي او نهٔ موندلې کېږي نو وئیلې شي نهٔ خو زمکې خوړلې دے نه اسمان تـه ختلې دے نو اخر دغه څیز څه شو.

**پښه په زمکه نهٔ کېښودل یا لګول**:-اص. (۱) هر وخت سور ګرځېدل. پیـاده قدم نـه اخېستل (۲) د هغه ماشوم په حقله وئیلې شي کوم چې د غېږ نه ښکته نه کوزېږي. (یعني که کوز کړے شي نو ژاړي).

**په زمکه بیا موندل**:- اص. پـه اسانه بیـا موندل. پوره متـل دے چې مـاپـه اسمان کښې غوښتې په زمکه مې بیا موندلې.

**په ـــــ پښه نه لګېدل**:- اص. د زمکې نه بره په هوا تلل. استعاره ده، ډېره زیاتـه خوشحالي رسېدل. (۲) په کبر او نخوت ګرځېدل.

**په ـــــ چک لګول**:-اص. زمکه ښکلول. خپله کمزوري یا د ماتې اظهار کول.

**په ـــــ رابغول**:- اص. (وـــــ په زمکه راخلاصول)

**پـه ـــــ راخلاصـول**:-اص. پـه پرزولـو کښـې اوچتـول او پـه زور سره پـه زمکـه را غورځول.

**په ـــــ راویشتل**:- اص. (وـــــ په زمکه راخلاصول)

**په ـــــ کښې ننه وتل**:- اص. ډېر زیات شرمنده کېدل.

**په ـــــ کوزېدل**. اص. (۱)دهوانـه د مارغـهٔ ښکته زمکې لـه راتلـل. (۲) دهـوای جهاز ښکته زمکې ته راکوزېدل. لینډنګ کول.

**په ـــــ ګونډې لګول یا زنګون لګول**:- عـاجزي څرګندول. (۲)ماتې منـل. د خپـل شکست اعتراف کول.

**پـه ـــــ ناست دے**:-اص. پـه خپلـه زمکـه (پولـو پټـو) ابـاد دے او پیـداوارئې خوري.

**په ـــــ نهان کېدل**:- اص. په زمکه کښې پناه کېدل. په قبر کښې ښخېدل.

**په ـــــ ویشتل**:- اص. پـه زور قـوت سره پـه زمکـه راخلاصـول. پـه زور سره پـه زمکه غورځول.

لکه باد چې لوئې ښتتر ولې په زمکه
هسې رنګ ورپسې ولوېښتم ښېخ پوره خوشحال

**ترخه ـــــ**:- اص. هغه زمکه چې شوره وي اوڅه په کښې نه پیدا کېږي.

**تهنه ـــــ**:- اص. هغه زمکه (پټې وغېره) چې د عامې سطحې نه ژوره وي.

**حسن خیزه ـــــ**:- اص. هغه زمکه کلې یا ښهر چې خلق ئې ډېر ښکلې دي.

**د اسـمان نـه پـه ـــــ رالګېـدل**:-اص. (۱)د لـوړے مـرتبـې نـه راغورځېـدل. (۲) د اوچتو خبرو و نه عامو (ښتیاؤ خبرو ته راکوزېدل. کب رماتېدل.

**د خالصې ـــــ**:- اص. هغه زمکه (پټې. علاقه) کومه چې د بادشاه ذاتي ملکیت وي یا د خرڅ د پاره په طور د جاګیر ورکړې شوې وي. د پخوانو وختونو دا یو عام رواج وهٔ.

**د زمکې اسمان فرق**:- اص. ډېر زیات فرق.

**د ـــــ په مخ**:- اص. په درسته زمکه. په ټوله دنیا کښې.

**د ـــــ تل**:- اص. د زمکې د ټولونه لاندینۍ حصه.

**د ـــــ تناو نه راکښلې کېدل**:- اص،د زمکې مخ لنډېدل. مجازاً. د سفر د تیزۍ او اسانتیا له کبله د یو ځاے نه بل ځاے تـه (دپخوانۍ زمـانې پـه مقابلـه کښې) ډېر زر رسېدل.

**د ـــــ غوښه**:- اص،خرېږې.درونې. دوړنګ.

**د ـــــ مالک**: –اص. د زمکې (پولوپټو) څښتن. د زمیندار یادهقان په مقابله کښې.

**د ـــــ مالیه**:- اص. هغه مقرر رقم چې د پټو د کچ مطابق ئې ملک یا خان حکومت له ورکوي.

**د ـــــ مخ**:- اص. سطح د زمکې. د زمکې برنۍ سطح (چې مونږ پرې اوسو)

شــپـه اور ورځ د مــاه د مهر له پرتوه
مخ د زمکې راته درست نقره طلا دے رحمٰن بابا

**دوه ګزه زمکه**:- اص،کنایهً. قبر یا لحد.

**ډاګه ـــــ**:- اص. هغه زمکه چې ډاګه پرته وي. یعني څه کرکرونده پـه کښـې نـه وه شوې یا ونې بوټې نه لري. صفا میدان وي.

**شاپه زمکه لګول**:-اص. (۱)په پرزولو (کشتۍ) کښې د حریف شا (ملا) په زمکـه لګـول چـې د هغـهٔ د را پرزېـدو او شکسـت علامـت دے (۲) شکسـت ورکول. ماتې ورکول.

**شاه نهري ـــــ**:- اص. وـــــ زمکه نهري.

**ښوره ـــــ**:- اص. هغه زمکه چې ښوره پـه کښـې پېـدا شـوې وي او کرکرونـده پرې نهٔ شي کېدې.

**للمي ـــــ**:- اص. هغه زمکه یعنې پټې چې د اوبـه کولـو انحصـار ئې پـه بـاران وي. باراني زمکه. د للمي زمکه.

**نهري ـــــ**:- اص،هغه زمکه یا پټې چې د نهر په اوبو اوبو کولې شي.

**نه د ـــــ نه د اسمان**:-ا ص. هیڅ کاره چې هیڅ پکار نـه راځي. بې کـاره بې فائدې.متـل دے د اوښ ټیز دے نه د زمکې شو نه د اسمان.

**زمکې**:- (ز+م+ک+ې) پ تر .مؤ) چې زمکې سره تعلق لري. لکه زمکۍ. غوښـه یعني خرېږې.

**زمن**:- (زَ + م + ن) [ع.اس.مذ]زمانه. دور. وخت. موده (وګوره زمان)

**زمن**:- (ز+م+ ن) [ق.اس.مذ](۱)ورد وظیفه. (۲)ډیوټي.

**زمند**:- (ز+م +ن+د) [اس مع] خوېشکې زمند. د پښتنو د یوې قبیلې نوم.

**زمند**:- (زَ + مَ + ن + د) [ق.اس معرفه. مذ]د زرې زمانې یو شاعر.

د مېرزاه دیوان مې ومانډهٔ په ګوډې
مسخره مې ارزاني خوېشکې زمندکړې خوشحال

**زمنـه**:- (زَ + م + نَ + هَ) [پ (ګـن). اس.مؤ]زومنـه. ښـوروا .هغه نرۍ ښـوروا چـې ډوډۍ په کښې ماتولې شي.

**ـــــ اچول**:- اص. په چوره ډوډۍ باندې ښوروا اچول. ډوډۍ لَمدول.

**زمنه**:-(زَ + م + ن + ه) [ق.اس.مؤ.ج. زمنې]وظیفه. فرض. ډیوټي. مقرره کار.

**ـــــ پوهه**:- اص. فرض شناس. د خپل کار احساس لرونکې. زمنې.

**زمنې**:- (زَ + م + نَې) [ق.اس.مذ]و ـــــ زمنه.

**زموخ**:- (ز + مو + خ) [ق.ص.مذ]زموخت. تېز او ډېر تریخ.

**زموخت**:-(زَ+مو+خ+ ت) [ق.ص.مذ. مؤ: زموخته.ج: زموختې]و ـــــ زموخ.

**زموختیا**:-(ز+ مو+خ +ت + یا) [زموخوالې (ز . مو . خ . وا .لې]تیزي. تریخوالې.

**زموږ:** - (ز + مو + ګ/ژ) [پ.ضمیر]و ـــــ زمونږ.

**زمول:** - (ز+مو+ل) [ق.مذ](۱)کمزورے. ناتوان. بدحاله. مړغېجن. (۲)هغه بچے یا غوښه چې د ښځې په رحم کښې وچ پاتے شي.

**زمولتوب:** -(زمول+تو+ب) [ق.اس.مذ]ناتواني. بد حالي. کمزورتیا. زمولتیا. زمولوالے. مړغېجنتوب.

**زمولتیا:** - (زمول + ت + یا) [ق.اس.مؤ]و ـــــ زمولتوب.

**زمولوالے:** - (زمول + وا + لَے) [ق.اس.مذ]د ـــــ زمولتوب.

**زمولول:** - (ز+مو+ل+و+ل) [ق.مص مت] کمزورے کول. ناتوان کول. پرېشانول. مړغېجن کول.

**زمولونګ:** - (ز+مو+ل+و+ن+ګ) [ق.حمص] زمولونه.

**زمولونه:** - (ز+مو+ل+و+نهٔ)[ق.حمص]زمولونګ. کمزورے کونه. ناتوان کونه. پرېشانونه. مړغېجن کونه.

**زمولوونکے:** (ز+مو+ل+وو+ن+کَے)[ق.فاع.مذ.ج.زمولوونکي.مؤ.زمولوونکې] کمزورے کوونکے. مړغېجن کوونکے. پرېشانه کوونکے.

**زمولے:** -(ز+مو+لَے)[ق.اس ص.مذ.مؤ: زمولې] ناتوان.کمزورے. مړغېجن.

**زمولېدل:** - (ز+مو+ لې+ د + ل) [ق.حمص]زمولېدنه.

**زمولېدنه:** - (ز+مو+لې+د+نَه) [ق.حمص]زمولېدنګ.کمزورے کېدنه. ناتوان کېدنه. مړغېجن کېدنه. پرېشانه کېدنه.

**زمولېدونکے:** (ز+مو+لې+دو+ن+کَے)[ق.مف.مذ.ج.زمولېدونکي.مؤ: زمولېدونکې] کمزورے کېدونکے. ناتوانه کېدونکے. مړغېجن کېدونکے. پرېشانه کېدونکے.

**زمونږه:** - (زَ + مو + ن + ګه) [پ.ضمیر]زمونږ.موږ.

**زمهریر:** - (ز+م +ه+ري + ر) [ف.اس.مذ] (۱) پورته په هوا کښې هغه طبقه چې بې کچه ډېره یخه ده. دغلته د باران نه ږلئې جوړېږي.(۲)د دوزخ یوه طبقه. چه په کښې د زمهریر په شانتې سخته سختي ده.(۳)تشبیهاً ډېر یخ ځاے.

**زمے:** - (ز+م+ې) [اس.مؤ] (۲)د یو ګل نوم. اذربو. ګل اشنان.(۳)یو بوټے چې سجی(شحار) د حاصلولو (د جامو وینځلو) د پاره استعمالېږي.

که هزار زمے صابون وربانديږ مرېږ
د توروالي زنګ به نهٔ ځي له غرابه خوشحال

**زمے:** - (ز + مے) [پ.اس.مذ]ژمے. د یخنۍ موسم.

**زمېرے:** - (ز + مې + رَے) [ق.مذ]حفاظت کوونکے. نګهبان

**زمین:** - (ز+مي+ن) [ف.اس.مذ]زمکه. مزکه. هغه کُره چې مونږ (بني ادم) پرې اوسو (وګوره زمکه).

**ـــــ افتاده:** – اص. (ف تر) هغه زمکه چې کرکرونده پرې نه وي شوې. شاړه یا غېر اباده زمکه.

**ـــــ بوس:** - (زمین + بو + س) [ف. تر.مذ. مو:- بوسه.مؤج: بوسې) زمکه ښکلونکے. سلام یا احترام یا ادب د پاره ډېر زیات ټیټېدل.

**ـــــ بوسي:** - (ف تر.اس. مو) زمکه ښکلونه. مجازاً. د ادب یا احترام دپاره ډېر زیات ټیټېدنه.

**ـــــ مرده:** - و ـــــ زمین افتاده.

**ـــــ غېر مزروعه:** -(ف تر. مو) هغه زمکه (پټي) چې کرکرونده پرې نهٔ وي شوې. بې کروندې (پرته) زمکه.(د مال په کاغذاتو کښې استعمالېږي).

**ـــــ مزروعه:** - (زمین+م+ز+رو+عه) [ف تر. مو]هغه زمکه (پټے) چې کرونده پرې شوې وي. کرلې شوې زمکه. اباده زمکه یا پټے. (د مال په کاغذاتو کښې استعمالېږي)

**ـــــ دار:** - (زمین+دا+ر) [اس.مذ.مو: داره.ج مو: دارې](۱)لفظي زمکه لرونکے ځکه ځني ځایونو کښې د زمکې مالک ته وئیلے شي) خو په پښتنو کښې د دې معنې بدلې دي). په زمکه کرکرونده کوونکے. دهقان. کاشت کار. (۲) هغه افسر چې د حکومت د طرفه د زمکو نګرانے کوي او د خلقو نه مالیه ټولوي. (په پښتنو کښې داسې زمیندار نه شته. په پنجاب او هندوستان او په نورو علاقو کښې ئې د مغلو په وخت کښې رواج لاړه ځکه په پښتو کښې د زمیندار معنې د اردو فارسۍ نه بیخي بدلې دي).

تر دا هسې زمیندار و هغه ښهٔ دے
چې نوکر دیوه تور کافر کلاب وي رحمٰن بابا

**زمینداره:** -(زمین+دا+ر) [پ اس.مواد زمکې د کرلو جنس(تخم) کوم چې کرونکي (دهقان) له ورکولے شي په فصل کښې د کرونکي (زمیندار) برخه. چې عموماً نیمه وي او نیم کاره بللے شي.

**په ـــــ ورکول:** - زمکه (پټے) د هقان له په دې شرط ورکول چې د فصل ځهٔ برخه (عموماً نیمه به دخپل حق په طور اخلي.

**زمینداري:** -(زمین+دا+ري)[پ.اس.مؤ](۱) د زمکې کرنه.دهقاني. کاشتکاري د زمکې د کرلو ریبلو کار کسب. (۲) د زمکو نګراني او مالیې وصولي (وګوره نوټ د زمیندار تر لاندې).

**زمینداور:** -(ز+مي+ن+دا+و+ر)[پ.اس.مذ](۱)په افغانستان کښې دیوے علاقې نوم (۲)وګوره کجکے.

**زمین دوز:** -(زمین+دو+ز)[ف.تر.مذ]د زمکې د لاندې. د زمکې دسطحې د لاندې په زمکه کښې دننه کنستلے شوے او جوړ شوے (سړک. د ګاډي پټرې وغېره.

**ـــــ کور یا قلعه:** - اص. هغه کور یا قلا چې د زمکې لاندې پټه جوړه کړې شوې وي چې د پاس نه عامه زمکه ښکاري.

**زمینه:** -(ز+ مي+ نه)[فپ.اس.مو.ج: زمینې] بنیادي ځهٔ خبرې معاملې لکه د صفحې پیدا کول.

**ـــــ برابرول:** - اص. بنیاد سمول میدان سمول یا هوارول. (د ځهٔ خبرې یا معاملې د پاره).

**ـــــ تیارول:** - د ځه خبرې یا معاملې د پاره میدان هوارول.

**زمیني:** -(ز+مي+ني)[ اس. صفا] چې زمکې سره تعلق لري. لکه زمیني هدف. یا توت زمیني.

**زن:** -(ز+ن) [ف. لالاحقه ده. د ځنو الفاظو وروستو لګولے شي. لکه شمشیر زن. تورزن.

**زن:** -(ز+ن)[ف.اس.مو.ج: زنان](۱)ښځه. دمرد په مقابله کښې.(۲) ښځه. ماندینه ارتینه. (د خاوند ځښتن په مقابله کښې).

د زنانو وینا مـاوره کـه دانا ئې
چې خبره ئې بې خبره خسراني ده حافظ

**ـــــ باره:** - (با+ رهَ) [ف.مذ]هغه سړے چې ښځو سره پرې میل ملاپ لري.

**ـــــ جلب:** - (ج+ ل + ب) [ف. مذ]بړوا. دله. دیوث دووس.

**ـــــ دوست:** - اص. د دیوسي کار. د یوسي. دووسي.

**ـــــ دوست:** - اص. هغه سړے چې د ښځو ډېر شوق لري.

**ـــــ زر:** - اص. ف. جمع) دا درې ځیز ونه داسې دي چې د دنیا اکثر جنګ جګړې د دې په وجه مینځ ته راځي.

**ـــــ صیغه:** - (صي+غه) [ف تر] هغه ښځه چې د متعه په وجه سرې سره اوسي. (متعه یو خاص قسم میعادي نکاح ده چې پخوا په عربو و غېره کښې د دې رواج وهٔ. د مسلمانانو په ځنو فرقو کښې دا اوس هم جائز ګڼلے شي).

**—— طلاق**:-(زن+ط+لا+ق) [ف تر .مذ] هغه کس چې خپلې ښځې لـه ئې طلاق ورکړے وي. طلاقي (کنځل دی)

**—— مدخوله**:- (زَ + نَ + مَ + د + خو + لـه) [ف تر.مـو] (۱) هغـه ښـځه چې پـه کـور کښې اچولې شوې وي. (د زن منکوحه په مقابله کښې). (۲) هغه ښځه چې کوروالے ورسره شوے وي.

**—— مريد**:- (زن+م+ري+ د) [ف. تر.مذ] هغه سړے چې د خپلې ښځې مريد چې څـه ورتـه ښـځه وائي هـم هغـه کـوي. خپلـه راے نـهٔ لـري. د ښـځې تابعدار. د ښځې د حکم لاندې.

**زن منکوحه**:- (زَ+ن+مَ+ن+کو+حه) [ف تر.مو] هغه ښځه چې باقاعده نکاح ئې شوے وي. د شريعت مطابق په نکاح کړې ښځه.

**—— وش**:- اص،د ښځو په شان. ښځنو کے.

زن وش شــول دا مــــړونــــه
چې وبله کښيني په مجلسونه          سعيد خټک

**—— وشو** (و+ شو) [ف تر]ښځه او خاوند. ماندينه او څښتن.

**—— و فوزند**: – (زَ+ن+ف+و+ز+ن+د) [ف.مو]ښـځه او زوے. ماندينـه اوزامـن. بال بچ. ښځه او اولاد.

**زنا**:-(ز+ نا) [ع.اس.مؤ.ج. زناگانې]د خپلې شرعي ښځې نه علاوه بلې کومې ښځې سره بد فعلي کول. حرامکاري.

**—— بالجبر**:-(زنا+بـا+ل+ج+بَ+ر)[پردي.ښځې سره په زبردستي سره بـد فعلي کول. پردۍ ښځې سره په زور مجامعت کول. (يعني چې د ښځې رضائۀ وي]

**د —— پيدا**:- اص،حرامي.حرام زاده. زنا زاده.

**—— کار**:-(زنا+کا+ر)[عف.صف.مذ./ج. زناکاران]زنا کـوونکے. حرامکـارے کوونکے. زاني.

**—— کاره**:- (زنا+کا+رَه) [عف.صـف.مو.ج. زنـا کـارے.(۱)هغـه ښـځه چـې حرامکاري کوي. فاحشه زانيه.(۲) د کنځلو په طور هم استعمالېږي.

**—— کاري**:- (زنا+کا+ري) [عف.اس.مو.ج. زنا کاري] د زنا عمل. بدکاري. حرامکاري.

**—— کاري کول**:- اص. د زنا عمل کول. بدکاري کول. حرامکاري کول.

**زناخي**:- (زَ + نـا + خـي) [ار.اس.مـو.ج. زنـاخي]خورينگي قـايمول. سـهيلي. جوړول (د مغلو په وخت کښې يو رسم وۀ چې د ساهي محلاتو ښځو بـه يـو بلـې سـره خـورينگي يـا سـهيلي رشـته جوړولـه نـو د چرګـې يـا د کونترې د سينې هډوکے به ئې واخستو چې دوه برخې لري. هرې يوې بـه يـوه برخـه کلکـه ونيولـه او چې رابـه ئې کښلـه نـو دا بـوټۍ بـه پـه مـينځ وشلېدو او دوه ټوټې به شو. د چرګ دغې بوټۍ تـه زناخ وائي. ددې نه د غه محاوره جوړه شوه خو په پښتنو کښې څۀ داسې دستور نه شته)

**زنادقه**:- (ز + د + قَ) [ع.اس.ج]د زنديق جمع ده. و —— زنديق.

**زنار**:- (زَ+ نـا + ر) [ع.اس.مذ.زنارونـه] (۱) هغـه تـار چې عيسـايان، يهوديـان او مجوسيان ئې په ملا چاپېره تړي.(۲) هغه تار چې هندوان په غاړه کښې يا د ترخ د لاندې تړي. دے ته هندوان جنيو وائي.

دم وهل دې له توحيد له غير و طمع
د تسبيح ســره ګــډ نـهٔ د زنار څۀ   سعيد خټک

**—— بند**:- اص،(ف تر. صف. مذ مو: —— بنده) هغه سړے چه زنارئے تړلے وي. برهمن. بامبڼ. زنار پوش.

**—— پوش**:- (... + پو + ش) [و—— زناربند]

**—— دار**:- اص،زنار په غاړه کښے لرونکے. زنار په غاړه کړے.

ځاے ئې اور شي چې زنار ئې شي په غاړه
ولې نۀ چې ستا د زلفو زناردار وي          رحمٰن بابا

**—— سليماني**:- (زنا + ر + س + لَي + ما + نی)هغـه نـرے او باريـک شـان نشـان چه د سليمان په مهر کښے وو.

**زنازه**:- (زَ + نا + زَ) [پ.اس.مؤ]و —— جنازه)

**زناشوئي**:- (ز + نـا + شـو +ئـی) [ف تـر .مـؤ](۱)د ښـځې او د خاونـد تعلق. (۲)د ښځې د خاوند.کوروالے مباشرت.

**زنان**:-(زَ+نا+ن) [ف.وزن جمع] ښځې. ماندينې. (د مردان په مقابله کښې زنانه.

د مردانو کار له نفسه سره جنګ وي
نـــۀ زنـــان غونډې له نقش و نګينه          رحمٰن بابا

**—— خانـه**:-(ز+نا+نه+خا+نـه) [ف تر.مـو] پـه کـور کښـې د زنانـهٔ د پـاره مخصوصه برخه. (د مردانه په مقابله کښې)

**زنانه**:- (ز+نا+نه) [فَ + صف] هغه ځاے يا کار چې ښځو سره تعلق لري.د ښځو دپاره مخصوص ځاے يا کار.

**—— جامې پوشاک**:- اص.هغه جامې چې ټوکې يا ګنډې ئې دښځوسره مخصوص وي.

**—— ډبه**:- (زنانه+ډ+ب+ه) [ف تر.مو] په ريل ګاډي کښې هغـه ډبـه چې د ښـځو د پاره مخصوصه وي. نارينه په کښې نه شي کښيناستے. د ښځو ډبه.

**—— سکول يا مدرسه يا کالج**:- هغـه سکول يـا مدرسـه يـا کـالج چې د ښـځو جينکو دپاره مخصوص دي.

**—— هسپتال**:-اص. (۱) هغـه هسـپتال چرتـه چې د ښـځو دارو درمـل کـولے شـي چې ډاکټرانې ئې هم ښځې وي. (۲)د ښځو د بال بچ دراوړلو دپاره خاص هسپتال.

**زناي**:- (ز+ نا+ی) [پ تر.اس.فا] زنا کوونکے. زناکار. زاني.

**زنبر**:- (زَ + ن+ بَ + ر) [پ.اس.مذ]و —— زمبيل.

**زنبق**:- (زَ + م + بَ + ق) [ع.اس.مـذ](۱) د چمبيلي د ګلونـو يـو قسـم چې ډېـر خوشبو داره وي. چنبه.(۲)د چمبيلي تيل.

پوزه ئې غنچه ده د زنبق سبب سپينه زنه
مشـــک د مـــخ خالونـــه مـــخ کښـــې مـــه پـــارا
خوشحال

**زنبک**:- (ز +ن + ب + ک) [پ.اس.مذ.ج. زمبکونه]رومبک.ګوچه.زنېق.

**زنبل**:-(ز+ن+ب+ل)[پ مص مت]څمبل.څنبل. سترګه وهل. په سترګې اشاره کول.

**زنبنه**:- (ز+ن+ب+نه) [پ.حمص]څنبنه. په سترګه اشاره کونه.

**زنبـور**:- (ز+ن+بـو+ر) [ع. اس. مـذ](۱)مچـی. (۲) د شـاتو مچـی. (۳) انبـور چې ميخونه پرې راوېنکے شي.(۴) وړه توپه چې په اوښ (وغېره) وړے شي.

که د غلو زې لباس وکا ، غزا اوشوه
شـهـد نـۀ دي چا موندلي بې زنبوره          رحمٰن بابا

**—— خانه**:-(عف. اس.مو.ج: خانې) د مچو کور. ګګ. ډومبکے. ډمبوسکے.

**زنبورچي**:- (زمبور + چي) [عف. اس.مـذ.ج. زنبـور چيان]هغه سړے چې زنبور (يعني وړه توپه) چلوي. د زنبور توپچي.

**—— دار**:- (+ دا + ر) [فا تر. اس.مذ]و —— زنبورچي)

**ـ داري**:-(+دا+ري) [فـاتر. اس.مـؤ] د زنبـوره يـا زنبـورک لـرونکے. د وړې تـوپې. توپچي توب.

**زنبورک**:-(ز+ن+بو+ر+ک) [عف. اس.مـذ. ج زنبورکونـه]د زنبـور اسـم تصـغير دے. وړوکے زنبور. هغه توپه چې د زنبور نه هم وړه وي. زنبور.

**زنبوره**:-(ز+ن+ بو+ره) [ع.اس.مو.ج. زنبورې] (۱) د سـتار يـو قسـم چې دواړو سرونو ته ئې کدوګان لګېدلے وي چې کدو ئې يو طرف تـه وي نـو تنبـوره ورته وائي. (۲)وړوکے توپه. زنبورک.

**زنبوري**:-(ز+م+بو+ری)[عف.صف]دمچودګګ په شان.خانې خانې جالی. دار.

**زنبه**:- (ز+ن+ به) [ق.ص]په بدن باندې ګڼ ويښته.

**ـــــ کېدل**:- اص. په بدن ګڼ ويښته پيدا کېدل.

**زنبيل**:- (ز+م+بې+ل) [پ.اس.مذ] (۱)ټوکرۍ يا پچې چې د کجورو د پاڼو نه جوړه شوې وي. (۲) د فقيرانو کاسه چې د وچ کدو نه جوړه شوې وي. کچکول (۳) جولۍ. تيلۍ. کڅوړه. زنبر.

**ـــــ باف/ساز**:- (زنبيل+با+ف يا سا+ز)[ف.تر.مذ.مو.بافه، ج: بافي]زنبيل جوړونکے. کچکول جوړوونکے.

**ـــــ د عمر عيار**:- اص. وائي چې عمر عيار (افسانوي هيرو) سره يوه تيلۍ يا کڅوړه وه چې څه به ئې غوښتل په کښې به ئې کېښودل او راوښکل يعني ددنيا هر څېز په کښې موجود وو.

**زنپق**:-(ز+م+پَ+ق) [پ.اس.مذ ۱]جومپک يا جومپق چې ګڼ څيزونه وغېره په لږ ځاے کښې جمع شي. لکه د ستورو جومپک چې ګڼ ستوري په لږ ځاے کښې جمع ښکاري.

**زنجبيل**:-(ز+ن+جَ+بی+ل)[ع.اس.مذ]سونډ چې په دارو کښې استعمالېږي.

**زنجبيل العجم**:- (زنجبيل+ال+ع+ج+م) [ع.مر.اس.مذ]دعجم يعنې د ايران زنجبيل. هينجه. ديو بوټي جړه.

**زنجبيل الكلاب**:-(زنجبيل+ال+ك+لا+ب) [ع.مر.مذ]الفظي د سپو زنجبيل. کچلے ته وائي چې په دارو کښې استعمالېږي.

**زنجير**:- (ز+ن+جي+ر) [فا. اس.مذ](و ـــــ زنجير)

**زنجيره**:-(ز+ن+جي+ره) [ف. اس.مؤ] هر هغه څيز چې شکل کښې د زنځير په شان وي. خصوصاً تصوير يا د ليک نه چار چا پيره ښکلې حاشيه.

**زنځرز**:- (ز + ن +ځ + ر) [ر. صف]چې رنګے وي. چه ګڼ نۀ وي.

**زنځه**:- (ز+ن+ځ+ ه) [پ.اس.مؤ.ج: زنځې] سوبله. شوبله. هزار پا.

**زنځي**:- (ز + ن +ځ + ي) [ق.اس.مؤ] د کالو (زيور) نرۍ کړۍ.

**زنځي**:- (ز+ن+ځ+ي) [ق.اس.ج] زرنځي. زرنه. تارکول.

**زنځير**:-(زَ+ن+ځي+ر) [پ.اس.مذ.ج: زنځيرونه] (۱)د اوسپنې نه جوړه چې کړۍ کړۍ وي. ځنځير. (۲)د هاتيانو شمار زنځيرونو په حساب کولے شي. لکه څنګه چې داسونو شمار په "راس" کولے شي. لکه زنځيره هاتيان.

**ـــــ اغوستل**:- اص. په زنځير باندې ځان تړل. لاسونه يا پښې په زنځير تړل. ځان پابند کول.

**ـــــ د داد**:-اص. د انصاف زنځير. هغه زنځير چې نوشيروان باچا (او بيا جهانګير باچا) خپل محل نه بهر زوړند کړے وۀ چې چا مظلوم به دا زنځير راښکۀ نو ددې زنځير بل سرته دې سره تړلے جرس به د محل د ننه و غړيدو او باچا به خبر شو چې څوک فريادي راغلے دے او بيا به ئې د دې مظلوم فرياد په خپله واورېدو او انصاف به ئې وکړو.

**ـــــ د در**:- (زنځير+د+د+ر)د دروازې زنځير چې څوک ميلمه يا ملاقاتي به راغے نو دغه زنځير به ئې وشړنګاوه.

**ـــــ ساز**:- (زنځير + سا +ز)

**ـــــ ګر**:- (زنځير+ګ+ر)زنځيرونه جوړونکے.

**ـــــ شلول**:-اص. زنځير (دوه) ټوټې کول. خصوصاً هغۀ زنځير ماتول په کوم چې يو سړے تړلے شوے وي. ځان ازادول.

**ـــــ وهل يا شړنګول**:-د چا د کور د دروازې زنځير خوزول چې اواز ترې پيدا شي او د کور خاوند خبر شي چې څوک ميلمه يا ملاقاتي راغلے دے.

**په ـــــ تړل**:-اص. لاسو يا پښو ته زنځير اچول چې چرته تلے نه شي. بندي کول. پابند کول.

چې رقيب راته تړلے په زنځير ؤ
خپل حبيب رابادنې پرانست هغه در بيا — رحمٰن بابا

**په ـــــ کول**:- اص. په زنځير يا زنځيرونو تړل. پيکړې چاته اچول. بندي کول. لېونې د لېونتوب په سبب بند شي

مست هاتي خپلې مستۍ په زنځير کړ — خوشحال

**زنځېرل**:- (ز+ن+زې+ر+ل) [پ. مص مت] زنځيرول. په زنځير تړل

سترګې دې بلا دي چې ئې واړوې ملالې
زخم پيدا نۀ ، دننه زړونه زنځيري! — خوشحال

**زنځيرول**:-(ز+ن+ځي+ر+و+ل) [پ.مص مت]د ور د زنځير کړۍ په کونډه کښې ورکول چې ورنه لرې کېږي. ور بندول. ورتړل. ورکونډه کول.

**زنځيري**:- (ز + ن+ ځي+ري) [پ.اس ص.مؤ](۱)چې زنځير سره تعلق لري. (۲)قيدي.بندي.(۳) د زنځير په شکل کښې. لکه په کشيده يا په ګنډلو کښې.(۴)يو قسم پټ خط چې خوشحال خان خټک د خپلې کورنۍ دپاره اختراع کړے وۀ چه بل څوک پرې نه پوهيده.

**ـــــ کول**:- اص. په زنځير تړل. پابند کول. بندي کول.

**زنچخ**:- (ز + ن + ج + خ) [ق.اس.مذ]زنخدان.

**زنچک**:-(ز+ن+چ+ک) [فا.اس ص.مؤ] هغه نارينه چې د ښځو صنفونه لري. هيجړا. نينځک. ښځونک.

**زنخ**:- (زَ + نَ + خ) [فا.اس.مذ] زنخدان. زنه.

زېره څنه ئې سنه ده د فردوس
په تندي کښې د زنخ د خوږو زئيم يے — خ ، م ، پ

**زنخدان**:- (ز + ن+خ+دا+ن) [ف.اس.مذ] زنه په دې کښې اصل لفظ "زنخ" دے. دان ورسره زياتي دے.

چې د خط په رود ئې خلق پکښې پرې ووځي
زنخدان ئې تر سبزې لاتدې کوهے دے — رحمٰن بابا

**زنخول**:- (ز+ن+خ+و+ل) [ق. اس. مذ.ج: زنخولونه] هغه نرۍ پرده چې د زړۀ او ځيګر تر مينځ وي.

**زند**:-(ز+ن+د) [ف.مذ] (۱) ژند. د زردشت د کتاب نوم چې د زردشت منونکي (اتش پرست پارسيان) ئې الهامي کتاب کڼي. (۲) د اتش پرستو د مذهبي کتاب "اوستا" پهلوي ترجمه او شرحه.

**زندان**:- (ز+ن+دا+ن) [ف.اس.مذ.ج: زندانونه] (۱) بندي خانه. قيد خانه. جيل (خانه) (۲) مجازاً داسې ځاے چې سړے په کښې ګيروي او وتے ترې نه شي.

څۀ دې دوزخونه پکښې همره غذابونه
جوړ دے و دبښو ته يو زندان د محمد — خوشحال

**ـــــ کېدل**:- اص،قيدېدل. په زندان کښې اچولے کېدل.

نـۀ ګناه نـۀ مې تقصير ؤ
د بادشاه په بند زندان شوم — خوشحال

**ـــــ چي**:- (ـــ + چي)د زندان ساتونکے. د زندان محافظ دبندي خانې محافظ يا منتظم. جيلر.

**په ـــــ کښې اچول**:- اص. بندي کول. قيد کښې اچول. قېدول.

**په ـــــ کول**:- اص. قيد کول. بندي کول.

که بادشاه ئې په زندان کا غم ئې نۀ وي — خوشحال

**له زندانه رايستل/ خلاصول**:- ازادول. د بنده خلاصول.

**زنداني**:- (ز+ن+دا+ني) [پ اس.مذ.ج: زنادانيان] په زندان (بندي خانه) کښې چولے شوے. بندي. قېدي.

**ـــــ کول**:- اص. زندان ته اچول. بندي کول. قيد کول.

د ګېسو که ئې يو خم تروله ښکاره شي
د يوسف غونډې بـه څو څو زنداني کا — سعيد

**زندرک**:- (ز+ن+د+ر+ک) [ق.اس.مذ.ج. زندرکونه]د زنځ یا د زنې هډوکی.

**زندقــه**:- (ز+ن + د+ق) [ع. اِس.اِس.ج] زنـدیق کېـدل. بـې دینـه کېـدل. (و ــــ زندیق)

**زنـدګاني**:-(ز+ن+د+ګا+ني)[ف.اس.مو.ج.زنـدګانی](۱)ژوند. جونـد. حیـات(۲) عمر. د عمر وخت.

ــــ **تېرول**:- اص. ژوند تېرول. د ژوند ورځې شپې اړول. ژوند کول.

ــــ **کول**:- اص. ژوند تېرول. استوګنه کول.

لکه غول په بیابان زندګاني کړي

فراغت وے ددې دهر له راغلیو حافظ

**زندګي**:-(ز+ن+دَ+ګ+ي)[ف.اس.مو](۱)ژوند. جوند. حیات(۲)عمر. د عمروخت

کـه رحمٰـن پـه جهـان ډېـر پـایم دلبـره

زنـدګي زمـا بـې تـا څـهٔ پکـار نـهٔ ده

**زنـدګي بخـش**:-(زندګي+ب+خ+ش)[فتر.صـف](۱)ژوند(جوند)بخښـونکی. د مرګ نه بچ کوونکی. (۲)هغه څیز یا عمل چې سړے پرې ژوند مومي.

**تېرول**:- اص.(و ـــــ زندګاني تېرول)

**زنده**:- (ز+ن+د+ ه) [فا. ص]ژوندے. ژوند لرونکی.

ــــ **باد**:- (با+ د) ژوندے اوسې یا اوسئ. تـل د ې وي. د تحسین کلمـه ده. د چا د ښهٔ کار د تعریف په موقع وئیلے شي.(۲) دعائیـه کلمـه ده چې د کوم نومور سړي یا ملک وغېره د نامې په اوریدو (یا وئیلو) نه پس په زوره وئیلے شي.

ــــ **بادے**:- (زنده+ با + دے) [افپ تر. اس مذ ، ج. ـ بادیان]هغـه سړے چې د بل په اواز د "زنده باد" چغه وهي. خوشامند ګرے.

ــــ **باش یا باد**:-(زنده+با+ش یا بـا+ د) د تحسین او صفت کلمه ده. ژوندے اوسې ـمرګ دې نه وې!. شابسے. افرین.

ــــ **پیل**:- (زنده+پی+ل) [اف تر. مذ. ج. زنده پیلان] لوے قدو قامت والا هاتي.

ــــ **جاوید**:- (زنده+جا+ و+ي+ د) [فا تر. مذ]تل (تر تله) ژوندے. هېڅکله نه مړکېدونکی.

ــــ **دار شب**:-(زنـده+دا+ر+ش+ب) [ف تر.مذ. مـو]ج: زنده داران. هغـه څوک چې ټوله شپه په وینښه تېروي یعنې ټوله شپه عبادت کوي.

ــــ **درګور (کول، کېدل)**:- اص. (۱) ژوندے په قبر کښې ښـخول. (۲)ژونـدون داسې خرابول چې لکه مړ شوے وي او په ګور کښې پروت وي.

ــــ **دل**:- (زنده+د+ل)[اف تر.مذ.ج. دلان] خوش طبع. خوش طبیعتـه. د ژوندي زړه څښتن. (۲) ټوقمار. ظریف. ظرافت طبع مجلس ارا.

ــــ **دلي**:-(زنده +د+لي) [اف تر. مو]خوش طبعي. خوشحاله اوسېدنه او بـل هم خوشحاله ساتنه. ټوقې ټقالې.

ــــ **(د)**:- ژوندے دے. حیات دے.

څـو زهٔ بـنده زنـده یم د هـغو زلفو بنده یم

چې تل ئې سل سل زړونه په هر تار دي مبتلا خوشحال

ــــ **رودے**:-(۱)د یو سیند نوم دے کوم چې په ایران کښې د اسفهان ښـهر پـه مینځ کښې بهېږي. (۲) د موسیقۍ د یـو سُر نـوم.(۳) د علامـه اقبـال د جاوید نامې د یو کردار نوم.

ــــ **سر**:- اص. ژوندے سړے. ژوندي سړي.

زنده سر به په دنیا کښې پاتې نهٔ شي

چـا آخستي ده غـافـلـه ستا هوده (خواجه محمد)

**زندۍ**:- (ز + ن + د + ي) [پ. اس.مؤ]زینده. پانسې.

ــــ **اچول**:- اص،د مړ کولو د پاره غاړې ته پړے اچول. پانسي کول.

**زندي**:- (ز+ن+دي) [ف.اس.مذ.ج. زندیان]د زند منونکے زندیق. اتش پرست. ګبر. مجوسي.

**زندیق**:-(ز+ن+ي+ ق) [ع.اس.مذ.ج. زندیقان.زنادقه.مو: زندیقه ج: زندیقې یا زنـدیقنې]د زنـد (کتـاب) منونکی.هغـه سړے چـې د مجوسـیانو یـا د پارسیـانو پـه مـذهب وي چـې د نـور و ظلمـت (د تیـارهٔ او د رڼـا) د دوهٔ خدایانو عقیده لري. بې دینه ، ملحد.

ــــ **کېدل**:- اص، بې دینه کېدل. ګمراه کېدل.

شېخ د ښار عبادت پرېښو زندیق شهٔ خوشحال

**زنړے**:- (ز + ن + ړَ ے) [اپ.اس.مذ]و ـــــ زونړے.

**زنغوزه**:- (ز+ن+ړ+غو+ ز+ه) و ـــــــــــــ زنې غوزے.

**زنغوزے**:- (ز+ن+ړ+ غو+ز+ے) [اپ.اس. مذ. ج. زنې غوزي]چلغـوزه. زلفوزه. زنې غونځی. زنغوزے.

**زنغونځی**:-(ز+ن+ړ + غو + ن + د/ز ے) [ق.اس.مذ]و ـــــ زنې غوزے.

**زنګاے**:-(ز+ن+ړ+ګا+ ے) [اپ.اس.مذ.ج. زنګي] پي. مخی. هلک (معشوق)

**زنګی**:- (ز + ن + ړ + کے) [اپ. اِص.مذ.ج. زنګي. زنکیان]اژنګی. هلک چې بالغ کېدو ته نژدې وي.

**زنکۍ**:- (ز + ن + ړ + کَ + ۍ) [اپ.اس.مؤ.ج. زنکیانې]جینۍ. جلکۍ.

**زنکۍ**:- (ز+ن+ړ+ ک + ۍ) [ق.اِس.مؤ]زیره. څیره.

**زنکۍ نار**:- (زنکۍ +نا+ر) [ق.اس.مذ]یو بوټے چې پاڼې ئې د زیرې پـه شان وي خو بېخ ئې د کچالو پـه رنګ وي. کچـه خوړلے شي.ګردۍ کنډولـه هـم ورتـه وائي.

**زنړے**:- (ز + ن + ړے) [اپ. اِس.مذ.ج. زنړي]اژنړے.بالغ هلک

**زنړے**:- (ز + ن + ړے) [ق.اِس.مـذ.ج. زنړي]زونړے.د خربـوزې یـا ددې قسم نـورو میوو ، سبز و تخم.

**زنړیه لار**:- (زَ + ن + ړي + يَ+ لا+ ر) [ق.اس.مـذ]دا یـو رسم دے چـې د نـاوې د ډولۍ نه کوزیدو په وخت یا د زلمي د سخرانې کره د راتلو په وخت ځنې هلکان لار ورته اونیسي او پیسې ترینه اخلي.

**زنزاوے**:- (ز + ن + زا + وَے) [ق.اس.مذ]د اوبو څاڅکے. د اوبو قطره.

**زنــزول**:- (ز+ن+ز+و+ل) [اپ.مـص مـت](۱) څـاڅکے څـاڅکے او قطـره قطـره راڅڅول. ډېر لږ لږ را اچول. (۲)کنجوسي او بخل کول.

**زنزولے**:- (زَ+ن+ز+و+لے) [اپ. مف.مـذ. ج. زنزولـي. مـؤ: زنزولې]قطـره قطـره څڅولے.

**زنزونګ**:- (زَ + ن + ز + وَ + ن + ګ) [ق.حمص]زنزونه

**زنزونه**:- (زَ + ن + ز + و + نَ) [اپ.حمص]قطره قطره څڅونه. زنزونګ.

**زنزوونــکے**:-(زَ+ن+ز+وو+ن+کَ)[اپ.فاع.مـذ.ج:زنزوونکي.مؤ:نزوونکې]قطره قطره څڅوونکے.

**زنزه**:- (ز + ن + ز+ه) [اپ.اس.مؤ]و ـــــ زنځه)

**زنزي**:- (ز + ن + زي) [ق.اِس.مؤ]لهه او توره ختېه.

**زنزېدل**:- (ز + ن + زے + د + ل) [اپ.مص لا]قطره قطره څڅیدل.

**زنزېدلے**:-(زَ+ن+زے+د+لَے) [اپ.مف.مذ.ج. زنزېدلي. مؤ: زنزېدلے]قطره قطره څڅېدلے.

**زنزېدنګ**:- (زَ + ن + زے + دَ + ن + ګ) [ق.حمص]زنزېدنه

**زنزېدنه**:-(ز+ن+زے+د + ن+ه) [اپ. حمص]قطره قطره څڅېدنه. زنزېدنګ.

**زنزېدونکے**:-(زَ+ن+زې+دو+ن+کَے)[اپ.مذ.ج:زنزېدونکي.مؤ: نزېدونکې]

**زنغلے**:- (زَ + ن + غ + لَے) [ق.اِس.مذ.ج. زنغلي]د پرتوګ پیڅه چې زارهٔ پرتوګ تـه اچولے شي.

ــــ **اچول**:- اِص،زاړه پرتوګ ته نوی پینڅه اچول.

**زنکدن**:- (ز + ن + ک+ دَ + ن) [اپ.اِس.مذ]و ـــــ ځنکدن)

**زنکه**:- (زَ + ن + کَه) [ف. اس.مذ]د زن تصغیر. ورہ ښځه.

**زنکۍ**:- (ز + ن + ک + ی) [ق.اس.مؤ](۱) زیره. ځیره.(۲) یو خودرو بوټی دے چې پلنې پاڼې ئې وي او د خشخاشو په شان تخم لري.

**زنګ**:- (زَ + ن + ګ) [فا. اس.مذ](۱)د اوسپنې وغېره خیرے. (۲)ګونګر وګان چې د ګډا په وخت په پښو تړلے شي.(۳)زیاته یخني.

**ـــــ الود(ه)**:- اِص. زنګ سره لړلے. زنګین. زنګ وهلے چې زنګ پرې لګېدلے وي.

د ښاديو په سوهات نور پذیر نهٔ دے
زړهٔ مې هسې ستا غمونو زنګ آلود کړ   سعید خټک

**ـــــ ایستل**:- اِص،(۱)د او سپنیز څیزنه زنګ لرې کول.(۲)مجازاً د بدن نه بیخي خیرے ایستل. ښهٔ صفا کول.

**ـــــ زنګ برقي**:- اِص. د بجلۍ ټلۍ.

**ـــــ خوړلے**:- اِص. هغه اوسپنیز څیز چه زنګ پرې لګېدلي وي او څهٔ برخه ئې په دې وجه کمه شوې یا بدرنګه شوې وي.

**ـــــ دار**:- اِص. زنګ لرونکے. خېرن.

د ښېشوئي. اخون صېقل ؤ د زنګدارو زړونو
بله د کوهاټ حاجي بهادر خوش دیدار پاتې نهٔ شهٔ   حافظ

**ـــــ زده**:- اِص. زنګ وهلے.

**ـــــ کېدل**:- اِص.زنګ پرې لګېدل. زنګ نیول.

مصری توره هم به بد غلاف کښې زنګ شي
خدا ے څوک مه کړه د بدانو همنشین   رحمٰن بابا

**ـــــ لګېدل**:- اِص.اوسپنیز څیز د هوا او اوبو په وجه زنګین کېدل. په اوسپنیز څیز باندې د هوا اونم په وجه شین زنګ شان ماده پېدا کېدل.

**ـــــ نیول**:- اِص.(و ـــــ زنګ کېدل)

**ـــــ وهلے**:- اِص. هغه اوسپنیز څیز چې زنګ پرې لګېدلے وي او څهٔ برخه ئې ورله خرابه کړې وي.

ستا یادونه مې په زړهٔ کښې داسې ښخ دي
لکه زنګ وهلے مېخ په زور لرګي کښې   شمس

**په ـــــ الود**:- اِص. زنګ وهلے. زنګین شوے.

په لاس آخسته نهٔ شي آئینه په زنګ آلوده   خوشحال

**له ـــــ صفا کول**:- اِص.زنګ ترې لرے کول. ځلقول.

پربږده دا دنیا و غافلانو ته یاره
صافه آئینه کړه د غفلت له توره زنګه   خ ، م ، ب

**لهـــــ صفا کېدل**. اِص. زنګ ترېنه لرے کېدل. ځلقېدل.

آئینه مې د زړهٔ صافه شوه له زنګه
چې په سر مې د توحید سپینه کلاه   خ ، م ، ب

**زنګار**:- (ز + ن + ګا + ر) [اس. مذ](۱) زنګ.

ځار تر هغه شه عزیز یسمه مې
چې باطن نُور دے ظاهر زنګاري   سعید خټک

**ـــــ خوړلے**:- اِص،(و ـــــ زنګ خوړ لے)

**ـــــ وهلے**:- (و ـــــ زنګ وهلے)

**زنګاري**:- (ز+ن+ګا+ري) [صف]د زنګار د رنګ. د رنګ په شان رنګ لرونکے. شین . شین ښخن.

د ګلګونو مېو ناوې راته ناسته
زنګاري قمیص آغوستے د منیارې   رحمٰن بابا

**زنګانــه**:- (ز+ن+ګـا+ن+ه) [اس](۱)د زنګـون مجـروري شـکل دے. و ـــــ زنګون (۲) د یو سر نوم.

**زنګدان**:- (ز+ن+ګ+دا+ن) [ف. اِس.مذ]هغـه ګنګـر وګـان پـه پښـو (ښـڼو) پورې تړلے شي.

**زنګل**:- (ز+ن + ګَ + ل) [ف. مذ](۱)جرس.(۲)د موسیقۍ په دولسو پر دوکښې یوه پرده.(۳)ګنګروګان چې د ګډا په وخت په پښو تړلے شي. زنګوله.

**زنګل**:- (ز+ن+ګ+ل) [پ. اِس.مذ](و ـــــ ځنګل)

**زنګل**:- (ز+ن+ګ+ل) [پ. مص مت]زانګل. جوټې خوړل.

**زنګله**:- (زَ + ن + ګ + لَ) [ف. مو]د موسیقۍ د یو سر نوم دے. زنګوله.

**زنګن**:- (ز+ن+ګ+ن) [پ. صف]زنګ وهلے.

**زنګنې**:- (ز+ن+ګ+ن+ی) [پ. اِس.مؤ](و ـــــ زنغلے.

**زنګوچ**:- (ز+ن+ګو + چ) [پ (ظرف). اِس.مذ]زانګو. پینګو.

**زنګوره**:- (ز+ن+ګو+ر+ه) [پ.اِس.مؤ.ج: زنګورې]معمولي جونګړه چې د څو ورځو د اوسیدو د پاره جوړه کړے شي.

**زنګورے**:- (ز+ن +ګو+ر+ے) [پ. اِس.مذ.ج: زنګوري]د انګور وګچه.

**زنګول**:-(زَ+ن+ګ+ و+ل) [پ. مص](۱)په زانګو وغېره کښې جوټې ورکول. (۲)غړول د زنګ. (جرس. ټلی) (۳)خبره اوږدول.

**زنګوله**:- (ز+ن + ګو + ل+ه) [ف. اِس.مو.ج: زنګولې]او ـــــ زنګل.

**زنګولۍ**:- (ز+ن + ګو+ل+ ئ) [ق.اِس.مؤ]د زړهٔ براس. د زړهٔ غصه.

**زنګولے**:- (ز + ن + ګو + لے) [اِس.مذ](وـــــ زنګوله)

**زنګولے**:- (ز + ن + ګَ + ؤ + لَے) [پ.مف.مذ.ج: زنګولي. مؤ: زنګولې]جوټه ورکړې.

**زنګون**:- (ز + ن + ګو + ن) [پ. اِس.مذ. ج: زنګانونه]ګوډه. زانو.

له درس مکتب نه آرزو مونده نهٔ شي
سعید تارک ئې څو پ زنګون نهٔ شهٔ   سعید خټک

**ـــــ کېدل**:- اِص. زنګون وهل. پهډښمن باندې فیر کولو د پاره تیار کښېنا ستل.

**ـــــ کېږد**:- چې زنګون ئې لګولے وي.

**ـــــ لګول**:- اِص. (۱)په زنګانه کېدل.ګوډے لګول. په ګوډو کښېنا ستل. لکه په نمانځه کښې چې کښېني . دادب نخښه ده. (۲) د چا خبرې ته سر ټیټول. (۳) دبې عزتۍ کار کول.

**ـــــ ماتول**:- اِص. (۱) په ادب کښېنا ستل. (۲)د ټوپک چلولو یاد لیند بازۍ د پاره یو زنګون په زمکه لګول. (۳)نخښه ویشتلو ته تیارېدل.

**ـــــ وهل**:- اِص. د ټوپک یاد لیندې چلولو د پاره زنګون په زمکه لګول. د لښکر یانو د جنګ یو خاص پوزیشن دے چې یوه پښه ئې ماته کړې او د بلې زنګون په زمکه ولګوي.

په ځیګر ځیګر مې ولې ، صرفه نهٔ کا
د غم لیندیو راته وواههٔ زنګون   خوشحال

**په ـــــ کښېنول**:- اِص. د ماشوم په خپله جولۍ کښې د زنګون د پاکښېنول. (د مینې او الفت د څرګندونې علامت دے). په زنګانهٔ کښېنول.

**ـــــ په زنګنو کېدل**:- اِص. په فکر کښې بوښتېدل. د ډېر فکر یا غمژن توب علامت دے.

**زنګونک**:- (ز+ن + ګ + و + ن + ګ) [ق. حمص] زنګونه.

**زنګونه**:- (ز+ن+ګ+ ؤ + نه) [پ. حمص](۱)جوټه ورکونه. ټالې ورکونه. (۲)خبره اوږدونه. خبره زرنهٔ فیصله کونه.

**زنګوونکے**:(ز+ن+ګ+وو+ن+کَے)[پ.فاع.مذ.ج:زنګوؤنکي.مؤ:زنګوونک](۱)جوټه ورکوونکے. ټالې ورکوونکے (۲) خبره اوږدوونکے. خبره زر نهٔ فیصله کوونکے.

**زنګی**:- (زَ + ن + ګ + ي) [ق.اِس.مؤ]توره ادیره.

**زنګي**:-(ز+ن+ګي) [اِس. مذ.ج: زنګیان](۱)د زنګ (افریقې) اوسیدونکے. حبشي

(۳)شرک.

ـــــ **ګوی**:- (زور + ګو + ئی) [پ.اس.مؤ.ج.زورګویانې. دروغ ګوی. دروغ دنیا زور ګوی. زور شوه ورځ شپه شوه په راست ګوئي- حافظ لاړ په شپه کښې وړي پښه په حکمت ږدي.

**زور**:- (زو + ر) [ق.ص.مذ] (۱)د غوړونو تیز. هغه سرې چې ډیر زر خبره اوري. (۲) هغه سورې چې د کلال په پچه کښې یو اړخ او بل اړخ ته جوړه وي

**زور**:-(زَ+دَ+ر) [پ.اس.مذ.ج. زودونه] دَټکي د پاسه علامت (َ)زبر. فتحه.

**د خبري ـــــ زیر مول**:- اص. د معاملې اصلیت نه ځان خبرول.

**زور**:- (زَ + و + ر) [پ. (ګن). ص. مذ] ژور- ښکته.

**زور**:- (ز + و + ر) [اس. مذ.ج. زودونه] (۱)طاقت.قوت. توان. (۲) وس- قابو. (۳) زبردستي. زیاتې- ظلم. (چې د زور قوت نه په کښې کار اخستې شي). (۴) امداد، ملاتړ. مرسته، کومک. (۵) زیات، په افراط.(۶)د شطرنج د یوې مهرې د قوت د پاره چې لمبه مهره د هغې په سمون کښې کېښوې شي چې که ړومبی مهره مخالف ووهي خو په دې بله دې مخالف مهره ووهلې شي.

ـــــ **اچول**:- اص،(۱)په څه خبره تاکید کول. څه خبرې له اهمیت ورکول.(۲)زور راوړل. مجبوره کول.(۳)د شطرنج د یوې مهرې د قوت د پاره د هغې په شا بله مهره کېښودل.

ـــــ **ازمائل**:-/**ازمئیل**:(۱)په خپله کښې دزورازمېښت کرل (چې د چا زور قوت زیات دې) مقابله کول. زور قوت سره معلومول. (۲)کشتئ کول.

هر نګاه ئې په ښکر د زړونو سپر دے

همېشه راباندې آزمائي زورونه رحمٰن بابا

ـــــ **ازمای**:- (ـــــ ا + ز + ما + ی)د زور ازمېښت- د زور معلومونه- په خپلو کښې د یو بل زور کتل چې د چا زور زیات دے. مقابله

ـــــ **ازمای کول**:- اص،(د ـــــ زور ازمائل)

ـــــ **اور**:- (ا + و + ر) زورور.

ـــــ **ایستل/ویستل/اباسل**:- (۱)د زورنه خلاصول. زور ختمول زور قوت ختمول بې زوره کول. (۲)کبر ماتول. لوئي ختمول.

ـــــ **بازو**:- (با + زو) [ف تر. اس. مذ] (۱)د مټ زور. د خپل بدن زور. خپل ځاني (ذاتي) زور. په خپل کوښښ- محنت یا مشقت (۲) توانځ قوت.

ـــــ **په زور ماتېږي**:- د بل د زور قوت جواب په زور قوت کېدے شي. د بل زور قوت ماتولو د پاره زور قوت پکارېږي.

ـــــ **پیدا کول**:- اصځ زور قوت زیاتول. امداد کمک حاصلول.

ـــــ **چلول**:- اصځ د زورنه کار اخېستل. د یو څیز یا کار د حاصلولو د پاره جائز طریقې په ځاے د خپل زور طاقت نه کار اخېستل. په یو کار کښې د صحیح طریقه کار په ځاے تش د خپل قوت یا اختیار نه کار اخېستل. د حق په ځاے په طاقت او اختیار څه کار کول. زبردستي یا رعب نه کار اخېستل.

ـــــ **چلېدل**:- اص- په زور کار کېدل. د طاقت قوت په ذریعه کار ایستلې کېدل. وس رسیدل (عموماً په نفي کښې استعمالېږي- یعني زور نهٔ چلېدل. یو کار په زور قوت سره نهٔ کېدل. وس نه رسېدل.

ـــــ **خانه**:- (خا + نَه) [ف تر. مو. ج. خانې] هغه ځاے چرته چې پهلوانی/زور قوت ورزشونه کولے شي. جمنازیم.

ـــــ **دار**:-(دا+ر)(۱) زورلرونکے.قوتناک. زورور (۲) موثره. هغه تقریر وغېره چې په ډېر جوش کښې کړے شوے وي. زورور. (۳)په زوره. پوره قوت سره

ـــــ **د بازو**:- اص.د مټ په زور. دلاس په زور، په خپل قوت

ـــــ **رسیدل**:- زور یا وس رسېدل- طاقت یا اختیار پکار ېدل. (عموماً په نفي کښې استعمالېږي لکه هلته د هېچا زور نهٔ رسي یعني زور نهٔ پکارېږي یا وس نه رسي.

ـــــ **زیاتې**:- (+ ز + یا + تې) ظلم، بې انصافي-

ـــــ **شور (سره)**:- اص.په جوش او خروش. په تېزۍ او تندی- په شوق او محنت سره.

ـــــ **ښئیل**:- اص.(۱)د خپل زور مظاهره کول. د خپل طاقت نمائش کول. د زور طاقت نه کار اختل. (۲)د خپل طاقت رعب اچول.

ـــــ **طبع/طبیعت**:- (زو+ر+ ط+ب+ ع/ ط+بی+ع+یت) د طبع یا طبیعت زور. په شاعرۍ کښې نوي نوي مضامین د پیدا کولو طاقت.

ـــــ **طلبه**:- (ـــــ طَ + لَ + به) [اس. صف]زور غوستونکې. هغه کار چې د کولو د پاره ئې د قوت ضرورت وي.

ـــــ **ظلم**:- (ظ + ل + م)(۱)زور زیاتې. زوراوبې انصافي- سختي- جبر(۲)جور و ستم. جو راوظلم (دلته زور د جور سره تعلق لري.

ـــــ **قلم**:- (قَ + لَ + م) د قلم زور. په نظم یا نثر کښې د خپل قابلیت او اهلیت ښاینه. د لیک اور د تحریر کمال.

ـــــ **قوت کول (په چا)**: - اص.د زور قوت نه کار اخېستل. زور ازمای کول.

که قوت دې د هاتي په زړهٔ مزرے یم

زور قوت راباندې مه کوه آتش یم خوشحال

ـــــ **کمول**:- د چا په زور یا طاقت کښې کمے راوستل-

ـــــ **کمېدل**:- (۱) زور نهٔ پاتې کېدل. کمزورے پاتې کېدل. بدن کم طاقته کېدل. (۲) مادي طاقت کمېدل. لکه په مال دولت کښې کمے راتلل یا لښکر او ملا ترنهٔ پاتې کېدل. یا کمېدل.

ـــــ **کول**:- اص.(۱) د زور قوت نه کار اخېستل. خپل پوره زور لګول. طاقت استعمالول (۲)زیاتېدل- وده کول. تېره ډېر زور کړے دے. (۳) چاپې. کول. (په پښو لاسونو وغېره.(۴)زیاتې کول. ظلم کول.

د لیلی نه نوریده ، د مجنون مینه

چې مې زړهٔ له یاره مینې خلق زور کا خوشحال

ـــــ **کېدل**:- اص،(۱)زیاتېدل. په څهٔ کار کښې افراط پیدا کېدل- (۲)خوریدل. (د مرض وغېره)

ـــــ **ګر**:-(ګ + ر) [ف. تر. مذ. مو: ګره- ج: ګرې] (۱)زورلګوونکے. (۲)پهلوان- لوبغاړے هیرو. په لوبو کښې چیمپین. پښتو کښې لادې معنو پوره رواج نهٔ دے موندلے)

ـــــ **ګیر**: - اص.په زور رانیونکے. الجه ګیر-

زهٔ وحشي که نهٔ راتلے ددې بد څر ت

د زور ګیر ښکاري به هچرې ښکار نهٔ وم حافظ

ـــــ **لګول**:- اص.د خپل پوره زور نه کار اخېستل. انتهای کوښښ کول. د سخت محنت مشقت نه کار اخېستل. طاقت استعمالول.

ـــــ **لګېدل**:- اص.(۱)په زور کار ایستلے کېدل. (۲)(په نفي کښې) په زور قوت کار نهٔ کېدل.

ـــــ **ماتول**: - اص.(۱)د بل قوت کمول. (د بل) قوت طاقت ته نقصان رسوول. په مقابله کښې پاتې راوستول (۲)کبر ماتول. لوئي ختمول. غرور او کبر ختمول.

ـــــ **ماتېدل**:- اص.زور کمېدل. زوړ زورنهٔ پاتې کېدل. کمزورے کېدل. طاقت ختمېدل یا کمېدل. د مقابلې قوت نهٔ پاتې کېدل.

ـــــ **مند**:- (زور + م +ن+دَ) د زور خاوند. زور لرونکے. طاقتور. قوتناک

ـــــ **مندي**:-(مَ + ن + دی) [ف تر] قوت ناکي. زوروري. طاقتوري.

**ـــــناک**:- اِص۔ زور والا۔زور لرونکے۔ قوتمند. طاقتور۔

**ـــــوتل**:- زور نۀ پاتے کېدل ـ قوت ختمېدل. بې زوره کېدل.

**ـــــ(ور) رسـيدل**: • اِص ،(۱)امـداد يـا کومـک وررسـېدل۔ (۲) تکليـف وررسېدل.

**ـــــورکول**:- اِص،(۱)تاکيد کول. د څۀ خبرې وغېره اهميت ښکاره کول. (۲)د چا د عمل په مقابله کښې اړولے کار يا عمل کول. (لکه ماله د فلانۍ خبرې زور راکوي). (۳) په شطريخ کښې د يوې مهرې شاته بله مهره داسې کېښودل چې که مخالف اولنۍ مهره اووهي نودې به د مخالف مهره اووهي.

**ـــــ په چا کول**:- (اِص)په چازياتے کول. په چا ظلم کول.

**په ـــــ اخستل**:- اِص،په قوت او طاقت سره قبضه کول. لکه د توري او ټوپک په زور اخېستل.

**په ـــــ شور (سره)**:- اِص۔ (۱)په جوش و خروش. په تادۍ او شوق سره. (۲)پوره قوت سره.

**په ـــــ کښې**:- اِص۔ (۱)په قوت کښې. په خپل پوره طاقت کښې۔ (۲)ډير زيات يا په اَفراط کښې. په زياتي.

**په زوره زوره**:- اِص.په زور دار اواز کښې. په اوچت اواز کښې زور۔

**په وچ ـــــ**:- اِص- تش په زور۔ قوت چې بل څۀ جواز ورسره شامل نۀ وي.

**دزور**:- زيات طاقتور. لکه د زور باران يا د زور سيلۍ.

**زوړ_زړے بنیۍ تـه رنـګ ورکـول**:- اِص. د دوکې او ظاهري ټیپ ټاپ نه کار اخېستل. دوکه کول.

**زوړ**:- (ز + و + ړ) [پ. ص. مذ]ـــــ ځوړ.

**زوړ توب**:- (ز + و+ړ+تو+ ب).

**زوړتیا**:- (ز+و+ړ+ت+یا) [پ.اس]تمن والے. ځویړ والے.

**زوړتوب**:- (تو + ب)(ـــــ ثیا (ت + یا) و ـــــ زوړوالے.

**زوړښت**:- (زو + ړ+ خ/ ش + ت) [ت. اِس.مذ]زوړوالے. زوړ توب.

**زوړکۍ**:-(زو+ړ+ک+ ئ) [ق. اس.مؤ]د ماشومانو د شپشتو یو قسم لوبه.

**زوړکے**:- (زو+ړ+کے) [و ـــــ زړوکے]

**زوړند**:-(ز+وَ+ړ+ن+د)[پ.ص.مذ.مؤ: زوړنده]ځوړند. اویزان.راټیټ شوے.

**زوړند ـــــ سر**:- اِص.ټیټ کړے سر. سر ښکته کړے. داسې حالت چې سرئې زوړند کړے وي. په غم یا فکر کښې ډوب. په سوچ او فکر کښې سر زوړند کړے.

په سجده ئې زمکې سر دے لګولے
هم زوړند سر په رکوع سره آسمان دے رحمٰن بابا

**زوړندول**:-(ز+و+ړ+ن+د+و+ل) [پ. (مص مت)](۱)ځوړندول. اویزاندول.(۲)څه خبره اټالول.

**زوړندے**:-(ز+وَ+ړ+ن+د ے)[پ.اِسص.مذ.ج: زوړندي]هغه پچۍ (ټوکرۍ) یا بل لوښے چې د خوراک څیزونو ساتلو دپاره رسۍ سره اویزانه وي.

**زوړندیدل**:- ز+و+ړ+ن+دي+د+ل)[پ.مص لا](۱)ځوړندېدل. اویزا نېدل.(۲)څه خبره اټالېدل.

**زوړوالے**:-( وا+لے) [پ. ص.مذ](۱)زوړ توب، بوډا توب، (۲) ورستوالے.

**زوړوالے**:- (ز+ و+ ړ+ وا+لے) [پ. ص.مذ ۰]زړۂ ړتوب.بوډاتوب.

**زوړول**:- (زو + ړَ + وَ + ل) [پ. مص مت]و ـــــ زړدل.

**زوړے**:- (ز + وَ + ډ ے) [اس .مذ.ج: زوړي]زوړ.

**زوړے**:- (زَو + ړے) [ق. اِس.مذ]غوټ. ګنډه.

**زوړیدل**:- (زو + ړي + دَ + لَ) [پ.مص لا]و ـــــ زړیدل.

**زوړے**:- (ز+ و +ړے) [پ. (بنو).ص.مذ]وړاندې.مخکښې.

**زوز**:- (زو + ز) [پ. اِس.مذ.ج: زوزان]یو قسم ازغن بوټے.

نۂ دے چا نهال کړے زوز په باغ کښې د ګلونو
ما چې نهاله وۂ ، اوس به لاله یاسمین نۂ شي حافظ

**زوزات**:- (زو + زا + ت) [پ.اِس.مذ]د زوذادي یا زوزات.

**زوزاد**:- (زو+زا+د) [فا. اِس.مذ.ج: زوزادونه]زوذات. نسل. بال بچ. زوزات.

لکه نیت په کل پښتون ؤ د اخون اېښے
مشفق پلار په زوزاد کله همره نیت ږدي حافظ

**زوزکودۍ**:- (زو+ ز+ کو + دَ + ئ) [ق.اِس.مؤ]د ازغوکور. ازغن ځا ے.

**زوزګوړے**:- (زو + ز + ګو + ړَے) [ق. اِس.مذ]یو خوږ شان څیز چې د زدز په ازغو باندې د پرخې ه شان پریوځي او ددوایۍ په طور استعمالېږي. کنډ.

**زوزیاڼه**: (زو+ ز+یا+ن+ړ+ه) [ق.اِس.مؤ. ج: زوزیاڼې]ازغن. ازغرے لرونکے.

**زوږ(نمبر(۱))**:- (ز + ؤ + ګ/ ژ) [ق.ص.مذ]ډیر تریخ. زهر.

**زوږ(نمبر(۲))**:-(ز+وَ+ګ/ژ)[پ.ص.مذ](۱)شورغوغا .(۲)قحط.نیستۍ.

**ـــــ ناک**:- (نا + ک) اِص،غصه ناک، ډیر شور کوونکے. غضبناک.

**زوږم**:- (ز+ و+ ګ/ ژ + م) [ق. ص.مذ]وږم، بوئي.

**زوږوزوږ**:- (ز + و + ګ+و+ز+ وَ + ګ/ژَ) [پ.ص.مذ]ډیر شور شرابه.

**زوږے**:- (ز + وَ + ګے/ژے)(صف. مؤ.ج: ږي. زړے، ستغے)

هېڅ مذکور ورسره نۂ بویه ښۂ نۂ دے
په نادان دي د دانش خبرې زوږې رحمٰن بابا

**زوږیدل**:- (ز + وَ + ګے/ ږے + د + ل) [ق. مص لا] ډیرشور کول.

**زوښ**:- (زو + خ/ش) [پ.اس.مذ]و ـــــ جوش.

هر چې بند ئې محبوب د زلفو په قفس کا
پرې په زوښ دا د فاني دنیا هوس کا خ ، م ، ب

**ـــــ کول**:- اِص، په جوش کښې راتلل.

**زوښا**:- (زو + خا/ شا) [ق.اِس.مؤ]ټینګ شربت. شیره. زوښه.

**زوښتے**:- (زو+ خ / ش + تے) [ق.اِس.مذ] یو قسم خوره ونه ده چې میوه په کښې نۂ لګي او پاڼې ئې د زر والو د پاڼو په شان وي.

**زوښول**:-(زو + خَ/ ش + و + ل) [پ. مص مت]جوشول. جوش ورکول. یشول.

**زوښه**:- (زو + خَ/شَ+ه) [پ. اس.مؤ]و ـــــ زوښا.

**زوغ**:- (زو + غ) [ع. حمص]کوږوالے، یو طرف ته کږیدنه.

**زوغار**:- (زو + غا + ر) [ع . اس.جمع] زغل. سکاوه. سکور.

**زوغړنځه**:-(زو +غ+ړ+ن+ځه) [ق. اِس.مؤ]داسې ونه چې میوه په کښې نۂ لګي.

**زوفا**:- (ز+ و+فا) [ع. اِس.مؤ] یو قسم وړوکے بوټے چې پاڼې او ګلونه ئې په دارو کښې استعمالېږي. پاڼې ئې ډیرې خوشبویه وي.

**زوک**:- (زو + ک) [ق.اِس.مذ] دوک. درد. تکلیف.

**زوک**:- (زو + ک) [ق.اِس.مذ]د کاریز سخته شوې خټه.

**زوکـړه**:-(زو+ک+ړ+ه) [پ. اِس.مؤ]پېداوښت. پېدائش. پېدا کیدنه. زېږیدنه. زوکړه.

**دزوکړې په وخت**:-اِص.د پېدائش په وخت. د پېدا کېدنې په وخت.

**زوکړه دزوکړې سالګره**:- اِص. د پېداوښت کالیزه.

**زوکړه طبیعي**:- اِص قدرتي او فطري طورسره زېږیدنه.

**زوکړه صناعي**:- اِص، مصنوعي طور سره پېدا کېدنه. یا پېدا کوونه.

**زوکـړې**:- (زو+کَ+ړ+ې) [پ. ص. مذ : ج: زوکړې]پېدا شوے. زېږېدلے. لکه نوې زوکړې. هلک. نو زائیده.

**زوکلول**:- (زو+ک+ل+و+ل) [ق. مص مت]. خفه کول. تکلیف وررسول. ازارول.

**زوکلوته**:- (زو + ک + ل + و + نَه) [ق. حمص] ازارونه. تکلیف ورکونه.

**ژوکلېدل**:- (زۂ+ک+لے+ د+ل) [ق. مص لا]خفه کېدل. په تکلیف کښې کېدل. ازار ېدل.

**زوکول**:- (زو+ کَ+ و+ل) [پ.مص] پېدا کول. زودل.

**زوکونه**:- (زو+ ک+ و+ ن+ه) [پ. حمص] پېدا کونه. زوونه.

**زوکوونکے**:-(زو+ک+وو+ن+کے) [فاع. مذ.ج: زوکونکي. مؤ: زوکوونکې]پېدا کوونکے.

**زوکه**:- (زو+ک + ه) [ق. اس. مؤ. ج: زوکې]یو قسم بوټے دے چې اوچت ځي او ویخ ئې غونډ وي.

**زوګ**:- (ز + وَ + ګ) [پ. اِس.مذ]و ـــــ زوږ.

**ـــــ ختل**:- اِص. زوږ ختَل . شور ختل . اوچت اٰواز پېدا کېدل .

په غره هرمه شه د مرائي شپخانو
که ئې د خولې د خفه کړي په څېر زوک اوخېژي حافظ

**زوګ**:- (ز + و+ګ) [ص. مذ]زهر. ډیر تریخ.

**ـــــ کېدل**:- اِص. زهر کېدل.

بې مئینه قرارې راباندې زوګ دے
شپه او ورځې په حرکت کښې تامه باد یم رحمٰن بابا

**زوګه**:- (زو + ګهَ) [ق.اِس.مؤ]زوله. د کوراسباب.

**زول**:-(ز+وَ+ل)[ق.اِس.مذ]یوقسم زهر داره بوټے چې په خوړوئې سړے مړکېږي.

**زول**:- (زو + ل) [ق.اس.مذ](۱)کولک. په چت کښې د رڼا یا لوګو د وتو دپاره

سورے. (۲) تکلیف. دود.

**زول**: -(زو+ل)[پ. اِس. مذ] (۱)ځول. سسخته سیلی. او باران (۲) زیاته یخني.

**زولال**: - (زو + لا+ل) [ق. اِس. مذ] ، ظالم ـ جابر.

**زولاندے**: -(زو + لا+ ن + د ے) [ق. اِس. مذ]مظلوم چې ظلم پرې شوے وي.

**زولانه**: - (زو+لا+ن+ ه) [پ. اِس. مؤ. ج: زولنې]زولنه. د خپو زنځير چې بندي ته ئې اچوي. بیړی.

**زولن**: - (زَو + ل + ن) [پ. ص. مذ] هغه زخم چې زوه په کښې پیدا شي.

د دیدن ملهم پرې درومي زولن دے

د عاشق له زړهٔ خوناب درومي زولن دے خواجه محمد بنګش

**ـــــ کېدل**: - اِص. پرهر کښې زوه پیدا کېدل.

پرهرونه مې د زړهٔ واړهٔ زولن شو

طبیبان مې هېڅ علاج پرهر نهٔ که خ ، م ، ب

**زولنه**: - (زو + ل + نَ + ه) [پ. اِس. مؤ. ج: زولنې]و ـــــ زولانه.

**زولنې اچول**: -اِص. (۱)بیړی اچول (۲) پابندي کول. (۳) د چا ازادي ته زولنې اچول.

**ـــــ ماتول**: - اِص. بیړی ماتول. بیړی شلول. د غلامۍ زولنې ماتول.

**زوله**: - (زو + لهَ) [ق. اِس. مؤ]و ـــــ زوګه.

**زوله**: - (زو + لهَ) [ق. اِس. مؤ] ډېر اوږد او بې ترتیبه څیز. ځوله.

**ـــــ کېدل**: - اِص. ډېر بې تر تیبه کېدل.

**زولی**: - (زو + لَ + ی) [پ. اِس. مؤ](وـــــ ځولی)

مخلوقات به څوک خلاص له مرګه نهٔ شي

نهٔ په زور ، نهٔ په زاری نهٔ پو زلوی خواجه محمد بنګش

**زولے**: - (زو + لَے) [ق. اِس. مذ. ج: زولیان] یو قسم دغنديي نه جوړه خاص بوری. چې د غوړو مشک په کښې کېږدي او په اوښ ئې بار کوي چې غوړي د نمر د تاؤ نه بچ وي. او نه ویلي کېږي.

**زولي زنبیلي**: -(زو+لي+ز+ن+ بي+ لي) [ق. اِس. مؤ] زړې او ورستې جامې وراسته زړوکي.

**زوم**: - (ز+و+م) [پ. ص. مذ] (۱)کمي. د څهٔ رقم نه راویستلې شوې حصه راوباسلې رقم (۲) نایاب. کمیاب.

**ـــــ کول**: - اِص، کول. نایاب کول.

صبوري او قراري دې په ما ذوم شي

که بې تا به ئې یا صبر یا قرار وي رحمٰن بابا

**ـــــ کېدل**: - اِص. کمېدل. نایاب کېدل.

**ـــــ والے**: - (ز+ و+م + وا+ لَے) [پ. اِس. مذ]کموالے. نایابي. کمیابي.

**زوم**: - (زو + م) [پ. اِس. مذ. ج: زومان]د لور خاوند. داماد.

**ـــــ تیا**: - ( + ت + یا) زوم والے ـ زوم کېدنه

**ـــــ خیل**: - (خي+ل)[پ.اِس]دزوم خاندان. دزوم کورنی. دلور سخرګني.

**ـــــ ګارے**: - (ـــــ+ ګا+رے) [ق. اِس ص. مذ. ج: زوم ګاري ـ مؤ: زوم ګاری] هغه سرے چې د زوم سره په ملګرتیا کښې د ناوې کورته ځي. زوم ګېری.

**ـــــ والے**: - (وا + لے) [پ. اِس. مذ] و ـــــ زوم توب.

**زومبک**: (زو+م+ي+ک)[پ. اِس. مذ. ج: زومیکان]زمبک. زنبک. جومپق ـ جمپق. جومپک د ستورو جومپک.

**زومبک ستوري**: - (ـــــ+س+تو+ر+ي) [ق. اِس]اؤه ستوري په یو ځاے چې فارسي کښې ورته پروین وائي ـ پر یمني.

**زومبکے**: -(زو+ م + ب + کے) [ق. اِس. مذ] (۱)د زومبک اسم تصغیر. ورکوټے جومپک. (۲)د غوړ لاندېنی. نرمه حصه.

**زوم ګے**: - (زو+م+ګے) [پ. مذ]د زوم اسم تصغیر. د مینې په طور وئیلے شي.

**زومل**: - (زو + مَ + ل) [ق. اِس. مذ]وعده. لوظ. قول.

**زومنه**: - (ز + وَ + م + نَه) [ق. اِس. مؤ]نقصان. تاوان. کمے.

**زومنه**: - (زو+ م + نَه) [پ. اِس. مؤ. ج: زومنې] بنوردا.

**زومول**: - (زو+م+ و+ل) [پ. مص متا] زوم کول. لور ورته په نکاح کول.

**زومی**: - (زو+مَ+ی) [ق. اِس. مؤ]و ـــــ زمی.

**ـــــ کنده**: - (ک+ن + دهَ) [ق. اِس. مؤ. ج: زومی. کندې]هغه زمکه چې وابنهٔ پکښې ډېروي، ورشو.

**زومیدل**: - (زو + مي + د + ل) [پ. مص لا] زوم کیدل. د لور خاوند کیدل.

**زون**: - (ز + وَ + ن) [پ. ص. مذ] و ـــــ زولن

**زون**: - (زو + ن) [رنګ. اِس. مذ. ج: زونونه]منطقه. دائره. خطه.

**زونبه**: - (زو + م + بهَ) [ق. اِس. مؤ] د سترګې اشاره.

**زوند**: - (ز + وَ + ن + د) [پ. اِس. مذ] ژوند.

**زوندون**: - (ز + وَ + ن + دو + ن) [پ. مذ]و ـــــ ژوندون.

**زوندے**: - (زو + ن + د ے) [پ. اِس. مذ: ج: زوندي]ژوندے.

**زونډیګر**: -(زو+ن+ډي+ګ+ر) [ق. اِس ص. مذ. مؤ: زونډیګره ج: زونډیګرې]هغهٔ څوک چې ځونډې جوړوي.

**زونډی واله**: -(زو+ن+ډی + وا+لهَ) [ق. اِس. ص. مذ]څوک چې ځونډې خرڅوي.

**زونړ**: -(زو+ن+ړه) [ق. اِس. مذ. ج: زونړي]د خربوزے یا د داسے قسم نو روسنز و تخم

**زونګه**: - (زو+ن+ګه) [ق. اِس. مؤ] (۱)انګې. د اواز پستنه راتلل. (۲)اشارت. د بدن د اعضاو حرکت چې د خبرې په ځاے بل په مطلب پوهولے شي. نباره.

**ـــــ وررسول**: - اِص. چاته اواز وررسول. څوک په خبره پوهول.

**زونه/زونے**: - (زو+نَه +یا زو+ نے) علاقه لکه ختک زونے. د ختکو علاقه.

پسرلے چې راشي یا پشکال شي

د ختک زونے شبخان خوشحال شي خوشحال

**زونے**: - (زو + نے) [پ. ص]ځینې. ځنې.

**زونے**: - (زو + نے) [ق. اِس. مذ] یو قسم نقش چې په څپوڼي (دسترخوان) باندې کولے شي.

**زووب**: - (ز + وو + ب) [ق. اِس. مذ]نمې. لوندوالے. زحوب. زوه.

**زووب ـــــ کول**: - اِص. زوه کول. زهوب کول.

**زوول**: -(زو+و+ل)[پ. مص متا] (۱)ژوول. جوول. چوپل. غابښونو کښې چېچل (۲)پیدا کول. په وجود کښې راوستل.

دا همه واړه ملکونه تاز ؤل نه کاف ونونه

هم والد ئې د ملکونو منکر ئې له ولده خوشحال

**زوولوجسټ**: -(زوو+لو+ج + س + ټ)[انګ. اِس ص. مذ]د علم حیوانات ماهر.

**زوولوجي**: - (زوو + لو + جي) [انګ. اِس. مؤ]علم حیوانات.

**زوولے**: - (زو+و+ لَے) [پ. مف. مذ. ج: زوولي ـ مؤ: زوولې] (۱) ژوولے. چوپلے. (۲) پیدا شوے.

**زوونکے**: - (زو+ و+ن+کے) [پ. فاع. مذ. ج: زوونکي. مؤ: زوونکې] (۱)ژوونکے. چوپونکے (۲) پیدا کوونکے.

**زوونګ**: - (زو + وَ + ن + ګ) [ق. حمص]و ـــــ زوونه.

**زوونه**: - (زو + ؤ + نَه) [پ. حمص] (۱)ژوونه. چوینه. (۲) پیدا کونه.

که محمود بنده زاد ؤ ، د خپل پلار ؤ

په زودنه کښې خو نهٔ ؤ د بل آل خوشحال

**زوه**: - (ز + وَه) [پ. اِس. مؤ. ج: زوے]د پرهر وینه او اوبه. زهوب.

**ـــــ بهیدل**: -اِص. د پرهر نه زوه راتلل. د پرهر نه ګند او وینه جاري کېدل.

**ـــــ کول**:- اِص. پر هر کښې ګند او وینه جمع کېدل.

**زوهب**:-(زو+ه+ب) په بلوچستان کښې د یوې علاقې او د یو سیند نوم ژوب.

**زوي**:- (ز + وی) [پ.(ظف). اس.مؤ.]ژبی. جبی. د ماشومانو یوه بیماري.

**زوے**:- (زو + ئے) [پ.اس.مذ.ج: زامن](۱)د پلار نارینه بچے. (۲) هر انسان. هر وګړے. مشران او بزرګان کشرانو ته د زوي یا بچي په الفاظو خطاب کوي.

هغه زوے چې په تا باندې مئین وي
په وګړي به سوا لکه کوهکن وي رحمٰن بابا

**ـــــ ـدادے**:- اِص. د مور زوے.

**ـــــ داورباب**:- اِص.لفظي د ارباب زوے چې پلارئې ارباب وي. محاوره د چا زورور سړي زوے د نواب زوے.

یو به نۀ سي هېڅ برے له سري ورخه
پائیناب سړے که زوړ ئې د ارباب دي رحمٰن بابا

**ـــــ کول**:- اِص.د چا بل ماشوم په زوي نیول. د چاچې خپل زوے نه وي نو دبل چانه ماشوم اوغواړي او د ځان سره ئې د زوي په شان اوساتي.

**ـــــ مړکېدل**:- ډیر زیات دوک یا غم رسېدل. په محاوره کښې د چا د انکار په موقع وئیلے شي چې په دې کار دې ملا ماتېږي.

سلامونه رالېږي په لړ د زوے مرې چې راځي (غاړه)

**ـــــ مړے**:- هغه چې زوے ئې مړ وي. ښیره ده. عموماً چې د چا نوم د چا نه هیر شي نو د یادولو دپاره د تکیه کلام په طور وائیلے شي. لکه ما ورته ووې دا زوے مړے ګریوان خومې راایله کړه.

**په زوي نیول**:- اصو ـــــ زوے کول.

**ـــــ نیولے**:- اص. هغه زوے چې د چا بل نه ئې خپل کړے وي.

**زوبرګے**:- (ز+و ي+ر+ګے) [پ.اس.مذ.ج: زوبرګي]او ـــــ زګیروے.

دا دستور دے چې له درده زبېرګي خېږي
ګڼه ځۀ ؤ له رحمٰن د شاعرۍ

**ـــــ ختل**:- اِص،زګیروي کول. فریاد کول.

**زویک**:- (زو + ئ + ک) [ق.اِس.مذ] د زوے اسم تصغیر ورکوټے زوے.

**زوے مړے**:- (زو+ه+م+ ړے) [پ. اس ص. مذ.ج: زوے مړي]چې زوے ئې مړ وي. د مړ زوي پلار

**ـــــ کول**:- اص، زوے ورمړ کول. زوے وروژل.

**ـــــ کېدل**:- اِص. د چا زوے مړکېدل. د مړ زوي پلار کېدل.

**زویان**:- (زو + یا + ن) [اس.مذ]د زوي جمع. زامن.

**زوېښل**:- (ز + وي+ خ/ش + ل) [مص مت] زیښل. ځیښل.

**زه**:- (ز + ه) [په. ضمیر]خپل ځان ته اشاره ده.

هسې مه وایه چې زۀ یم په جهان کښې
پیدا کړے خداے د سر د پاسه سر دے رحمٰن بابا

**زه**:- (زَ + ه) د ځه بدله لهجه روان شه.ځه.

**زه**:- (ز + ه) [ف. اس.مؤ.ج: زه ګانې]د لیندے زۍ (ځبی)

**زه ـــــ ګیر**:- (ګ+ي + ر) زه یا زۍ (ځَی) نیوونکے د ښکر یا هډوکي نه جوړ شوے هغه څلے چې په غټه ګوته موندۍ ګوته) کښې اچولے شي او د لېندې زۍ سرئې رابښکلے شي.

لړګے چې اوتوږې هاله تر تیر شي
په ښکر هنرو کا هاله ذهګیر شي خوشحال

**زهاد**:- (ز + هَا + د) [ع. د زاهد جمع] (و ـــــ زاهد)

چې ذاهد د محبت عرفان حاصل کا
ذهد هله پکار بېږي د ذها دو حافظ

**زهار**:-(ز+هَا+ر) [ف. مذ] د نریا ښځې پټ اندام. د نامه نه ښکته وېښتو ته د زهار ویښته (مو) وائي.

**زهد**:- (ز+ه+د یا / ه + د) [ع.اس.مذ] د عبادت د پاره د خلقو نه ځان په ډډه کول. پرهېزګاري. زاهدي. تقویٰ.

**زَه دان**:- (ز + ه + دا + ن) [ف. اس] رحم، بچه داني.

**زهر**:- (زَ +ه + ر یا ز + ه + ر) [ق. اس جنس](۱) هغه څیز چې په خوړلو ئې بنیادم یا (ځناور) مړکېږي. (۲) ډیر تریخ څیز.

**ـــــ اشام**:- (زهر. ا+شا+م) [ف. صف. مو: زهر اشامه](۱)چا چې زهر خوړلے وي. (۲) هغه څیز چې د زهرو اوبۀ ورله ورکړې شوې وي.

**ـــــ شامي**:- (شا + مي) [ف.تر.مؤ]د زهر مائع څیز ځښکل. زهر خوړل.

**ـــــ الوده**:- (ـــا + لو + ده) [فاتر. مذ] (۱)په زهر ولړلے. په زهرو ککړ. (۲) زهر دار زهر لرونکے. له زهرو ډک (۳) هغه تیرۀ وسله چې د زهرو اوبه ورله ورکړې شوې وي.

**ـــــ امېز**:- (ـــ ا + مې + ز) [فاتر. مذ](۱) هغه څیز چې زهر په کښې ګډ کړي شوي وي. زهر دار. زهر لرونکے. (۲) هغه ترخې خبرې چې لکه د زهرو په سړي بد لګي. د طنز نه ډک.

**ـــــ بوټي**:- (بو + ټي) هغه بوټے چې د زهرو علاج پرې کولے شي. (زهر مهره).

**ـــــ خند**:- (ـــ خ + ن + د) [ف. تر. مذ] (۱)هغه خندا چې د غصې په وخت اوکړے شي. (۲) هغه خندا چې د بل د شپکاوي دپاره یا د طنز نه ډکه وي. (۳) هغه خندا چې د کچه کېدو یا د شرمندګۍ په سبب وي. هغه خندا چې د غصې، طنز یا د خفت د پټولو په وخت کښې اوکړے شي.

**ـــــ خورول**:- اص،خرابي او مخالفې خبرې په خلقو کښې خورول غلطه یا مخالفه پروپیګنډه کول. زهریله خبرې کول.

**ـــــ خورول**:- (و ـــــ زهر ورکول)

**ـــــ خورېدل**:- (۱)د زهرو اثر په بدن کښې مختلفو اندامونو ته رسېدل. (۲) مخالفا نه پروپیګنډا خورېدل.

**ـــــ خوړل**:- خودکشي کول یا د خودکشۍ کوښښ کول.

**ـــــ خېژول**:- اص. په دم سره د مار لړم خوړلې زهر بدن کښې خورول. (عموماً د دښمن یا مخالف عمل ګڼلے شي)

**ـــــ دارو**:- (ـــ + دا + رو)(وتر + اس جنس) د زهرو دارو. تریاق.

**ـــــ دې شه**:- ښیره. د بد دعا جمله. یعني ددې څیز خوراک دربانديې د زهرو اثر اوکړو.

**ـــــ دممات**:- اص. د مرګ زهر.

**ـــــ دوړول یا نمرول**:- اص. زهر ناکې خبرې کول. د مخالف په حقله خطرناکې د اعتراض وغیره خرابې خبرې کول چې په خلقو کښې ئې خراب اثر کېږي.

**ـــــ زقوم**:- اص. (۱) ډیر سخت زهر (۲)ډیر تریخ.

خوږ ژوندون به په ځان تریخ زهر زقوم کړې
ته چې تریخ ادا کوې ګفتار د ژبې حافظ

**زهر قاتل**:- (ـــ قا + تل) [عف تر. اس جنس](۱)هغه زهر چې نتیجه ئې یقیناً مرګ وي. مهلک زهر. (۲)داسې څیز چې د زهرو غوندې فوري او خراب اثر کوي. (۳) ډیر زیات نقصان رسوونکے څیز.

بې هنروله قند هم زهر قاتل وي
قند ئې اوګڼه که زهر په هنر خوري رحمٰن بابا

**ـــــ کوزول**:- اِص. په دم سره د مار یا لړم خوړلې زهر هغه ځاے ته راوستل په کوم ځاے چې ئې چیچلے وي. د زهرو اثر کمول. زهر په بیر ته د ټک ځاے ته راوستل.

ـــــ **کول**:- اص. (۱)خوراک په چا باندې زهر کول. د خرداک نه پاتے کول. ان د خوراک په وخت کښې څۀ داسې خبره یا کار کول چې سړے خوراک پرېږدي. (۲) د زهر و په شان ترخول.

ـــــ **کېدل**:- اص. د زهرو په شان اثر کول. د وژلو کار کول.

خپل بیمار ئې حواله کړو په نصیب
ورتـه زهـر شـوې ګولۍ د طبیب خوشحال

ـــــ **ګډول**:- اص. (۱) په اوبو وغیره کښې زهر شاملول. (۲) په خبرواترو کښې یا د څۀ معاملې په حقله د شر او د ورانۍ خبرې کول.

ـــــ **ګنډېر کېدل**:- اص. بې خونده کېدل.

چې مې نوش د هجران پیاله کړه تلخه
د وصـال لذت مې ټول زهر ګنډېر شۀ رحمٰن بابا

ـــــ **ګیاه**:- (زهر + ګَ + یا + ه) د ګیاه (وښو) یو قسم چې د زهرو اثر لري.

ـــــ **لګېدل**:- د زهرو په شان لګېدل. ډېر بد لګېدل.

ـــــ **مهره**:- (م + ه + رَه) یو قسم زهر چې زهر راکاږي. د زهرو اثر لرے کونکے کاڼے. وائي چې د خطا په ملک کښې موندلے کېدونکے کاڼے ډېر اثرناک وي چې ورته خطائي زهر مهره وائي. (والله اعلم)

ـــــ **ورکول**:- اصخ (۱) زهر خورول. د وژلو دپاره په چا زهر خورول. (۲) په زهرو وژل.

ـــــ **هلاهل**:- اص. زهر قاتل. مهلک زهر.

دا شیرین شیرین شربت چې د وصال دے
د هجران په وکت به زهرِ هلاهل شي رحمٰن بابا

**دزهرو اوبه ورکول**:-چړې یا توري وغیره تیرې وسلې د ګرمولو نه پس داسې اوبو کښې یخول چې زهر په کښې ګډ وي.

**دزهرو ګوټ**:- اص. لکه چې څنګه د زهرو ګوټ کول په سړي ګران او ناګوار وي دغه شان تشبیهاً وئیلے شي چې څۀ داسې کار د سختۍ مجبورۍ نه کول چې زړۀ ئې نه غواړي خو په کولو ئې مجبور وي. ډېر ناخوښه اوناګواره کار.

**له زهرو ډک**:- اص. (۱) هغه سړے یا لیک چې خراب او بد اثر اچوونکے خبرې لري.

**زَهـــرا**:- (زَ+ه+َ+را) [ع.ص] (۱) زلقیـدونکے. پرقیـدونکے. روښـان منـور. (۲)د حضرت فاطمه رضی الله عنها لقب. (۳) د پښتنو زنانه ؤ نوم.

**زهرا**:- (ز + ه + را) د یـو مشـهورې سیارې نوم چې د نوروستورو پـه مقابلـه کښې ډېر روښانه ده. ددې قطر د زمکې نه لږ کم یعنی ۷۰۰ میله دے او د نمر نـه ئې فاصلـه ۶۷ کروړه میلـه ده. دې سیارې تـه نـا هیـد او لولوفلک یعنې د اسمان ملغلره هم وائي.

**زهراب**:- (زَ + ه + را + ب) [ف تر. مذ]د زهر او اب نه مرکب لفظ دے. یعني د زهرو اوبۀ یا هغه اوبۀ چې په کښې زهر وي. زهریلا اوبۀ.

**زهراب ـــ داجل**:- (ـــ + دَ + اَ + جَ + ل) [ف. تر. مذ] هغـه زهراب (پـه زهرو سره ګډے اوبه) چې په څکلو کښې ئې اجل یقیني دے. مرا د ترې اجل دے.

**زهره**:- (زَ + ه + رَه) [ف. اس مو. ج: زهرې] زهره. زاره. تریخې. اینې سره جختـه یوه وړه شان کڅوړه چې په کښې تیزابي شنه زیړ بخنه ماده جمع کېږي چې صفر بللے کېږي. وائي چې زړ ورتیا او د غصې تعلق دې عضو سره وي. (۲)مجازاً. زړورتیا. تکړه والے.

ـــــ **چاودل**:- اص. (۱)تریخے چاودل. بې همتـه کېدل. (۲) ډېر زیات کوښښ کول. سعي کول.

ما چې واؤرېدۀ د یار د مرګ ناره
سړے سخت دے و وې نۀ چاوۀ زهره خ ، م ، ب

ـــــ **چول**:- اص و ـــ زهره چاودل.

ـــــ **لرل**:- اص. تریخے لرل. د څۀ خبرې ډېر اثر کېدل.

ستا له جوره زهره نۀ لري چې آه کا
که کشور د عاشقانو شي ویران رحمٰن

**زهره**:- (زَ + ه + رَ) [ع. اس.مو] د مانبام ستر ګه. هغـه شوخه سیاره کوم چې عموماً دمانبام په وخت ښکاره کېږي. دا د ټولو ستورو نـه زیاتـه روښانه سیاره ده. ناهید او لؤلؤ فلک (یعني د اسمان ملغلره) هم ورتـه وائي. ددې سیارې قطر ـــــــ میلـه او د نمر نـه ئې فاصلـه تقریباً ۶ کروړ ۷۲ لکـه میلـه ده. د نمر نـه چاپیره یو چکر (د زمکې د ورځو په حساب)۲۲۵ ورځو کښې پوره کوي. یعني کال ئې زمونږ دَ ۲۵ ورځو برابر دے دښائست علامت ګڼلے شي. دې پورې د جادو وغیره قیصې هم تړلې دي.

د زهـــره پـــه ســـتوري زېـــړه
خـــوش خـــرم خوشـــحال خرســـند

ـــــ**جبین**:- (ـــ + ج + بی + ن) چې تندے ئې د زهرا ستوری په شان روڼ او روښانه وي. بې کچه ډېر ښکلے (د معشوقې شاعرانه صفت)

ـــــ**لقا**:- (ـــ + لَ + قا) هغه بني ادم چې مخ ئې د زهرا ستوري په شان روڼ او روښانه وي. بې کچه ډېر ښائسته د معشوقې شاعرانه صفت.

**زهره**:- (ز + ه +رَه) [ع. اس.مؤ] (۱) د یوې افسانوي مینـه ورې ښځې نوم چې د مهرې سره ئې مینه وه. (۲)د ښځو نوم اصطلاحاً محبوبه.

د مهـــــره د زهـــــره مینـــــه تـــــاري نـــــۀ وه
خـوش ګفتـار ئـې پـه خـاطر کښـې طـراوت ړدي

زهرې زهر زقوم راکړه زبون حال شوم
په انذوه مې چنګ بربط وهي خندا نه حافظ

**زهره ترکے**:- (ز + ه + رَه + ت + ر + کَے) [ق.اس ص. مذ. ج: زهره ترکي مؤ. زهره ترکې] غمژن. زړۀ چاودے.

**زهره ترکي کول**:- اص،غمژنول. زړه ورچا ودل.

**زهره ترکي کېدل**:- اص. غمژنېدل. زړۀ چاودل.

**زهـره ترکـي**:- (زَ + ه + رَه+ ت + رَ + ک + ي) [ق. اس. مـؤ] ډېـر زیـات غـم او پریشاني.

**زهري**:- (زَ + ه + رِ + ي) [فپ. صف]د زهر سره تعلق لرونکے. زهرناک. زهریلا. زهردار. د زهر اثر لرونکے.

**زهـریلا**:- (ز+ه+ري +ل+ا) [ار. صـف] (۱) زهرنـاک. د زهـر واثـر لـرونکے. (۲)پـه زهروګډ. چې زهر په کښې ګډ شوي وي. زهر لرونکے. له زهرو ډک.

**زهـزاد**:- (ز + ه + زا + د) [ف. اس.مـذ] زهـوزاد. زاؤ زاد. اولاد. بـال بـچ. زامـن. (نواسې) دا په اصـل کښـې زه وزاد دے چې معنې کښـې ښـځه او اولاد ده خو په پښتو کښې ئې معني تش د اولاد کولے شي.

**زهوب**:- (ز + هو + ب) [په.اس.مذ] زوَه. زووب.

**زهوب. تلل**:- اص. زوه بهېدل اوینه تلل.

دا زما د سترګو اوښکې وینې نۀ دي
د ویشتلي زړۀ له سترګو ځي ذهرب خوشحال

**زهوب ـــ روانېدل**:- اص. د زهوب تلل.

درویشان دې دعا که زۀ ئې په ځان کړم
که د زړۀ نه مې روان شي رازهرب خوشحال

**زهوزاد**:- (ز+هو+ زا+د) [ق. اس. مذ] زوزاد. نسل. اولاد.

**زهوق**:-(ز+هو + ق) [ع. صف]نیست و نابود کېدونکے. بیخي ورکېدونکے.

**زهول**:- (ز + ه + و + ل) [ق. مص مت] د غم یا بیماری په وجه مانده کېدل. د

خپل اصلي حالت نه کمول.

**زهولے**:-(ز+ه+و+لے) اق. مف. مذ. ج: زهولي. مؤ: زهولې[د غم يا بيمارۍ په وجه مانده شوے. غم يا بيمارۍ مانده کړے.

**زهونګ**:- (ز + ه + وَ + ن + ګ) اق. حمص]و___زهونه.

**زهونه**:- (ز+ه+و + نَه) اق.حمص]د غم بيمارۍ يا بد رد وئيلو او رټلو په سبب مانده کوونه.

**زهوونکے**: (ز+ه+ وو+ن+کَے) اق.فاع. مذ. ج: زهوونکي مؤ: زهونکې] . غم او فکر سره مانده کوونه. کمزورے کوونه.

**زهے/نصيب/قسمت**:- اِص (ف تر.) د تحسين کلمه ده يعني څۀ بنۀ قسمت يا نصيب دے.

**زهيدل**:- (زَ + هے + د + ل) اق. مص لا] د غم او بيمارۍ په وجه مانده کېدل. کمزورے کېدل.

**زهيدلے**:- (ز+ هي +د+ لَے) اق. مف. مذ. ج: زهيدلي مؤ: زهيدلې]. د غم يا بيمارۍ په وجه مانده شوے. کمزوره شوے.

**زهيدنګ**:- (ز+ هي +دَ +ن+ ګ) اق. حمص] و ___ زهيدنه.

**زهيدنه**:-(ز+هي+د+نَ+ه)اق.حمص] د غم او بيمارۍ په وجه مانده کيدنه کمزورے کيدنه. زهيدۀ.

**زهيدونکے**:- (ز+هے+ دو+ن+کَے) اق. مف. مذ. ج: زهېدونکي مو: زهيدونکې] د غم او بيمارۍ په وجه مانده کېدونکے ـکمزورے کېدونکے.

**زهيدۀ**: (ز+ هے + دۀ) اق. حمص]و___ زهېدنه.

**زهير**:-( ز+هی+ ر) [ع.صف. مذ: مو: زهيره. ج زهيرې] (۱)خفه. دلګير. غمژن (۲) مانده. ډنګر. تپ. کمزورے.

د دلبرو صدقې لره ئې غوارم
هسې نه چې په دنيا پسې زهير يم رحمٰن بابا

**___ کول**:- اِص دلګير کول. په تکليف کنبې اچول. ازارول.

**___ توب**:- (___ +تو + ب) [پ.اِس.مذ]. غم. خفګان. پريشانی. رنځ. مانده توب. زهيرتيا زهير والے.

**___ تيا**:- (___ت + يا) [پ. اِس.مؤ]د___ زهير توب.

**زهيرول**:-(ز+ه+ي+رَ+و + ل) اِپ. مص مت] خفه کول. په تکليف کنبې اچول

په دنيا پسې درست عمر زهيرېږې
ځان يودم د خدائے د پاره زهيرنګار رحمٰن بابا

**زهيرونګ**:- (ز + ه + ي + ر + وَ + ن + ګ) اق. حمص] و ___ زهيرونه.

**زهيرونه**:- (ز+ه+ي+ر+د+نَ)اپ.حمص] ازارونه. په تکليف کنبې اچوونه. دلګير کوونه.

**زهيروونکے**:-(ز+ه+ي +ر+وو+ن+کَے) اِپ. فاع. مذ. ج: زهيروونکي.مؤ زهيرونکې] ازارونکے.تکليف ورکوونکے. خفه کوؤنکے.

**زهيرېدل**:-(زَ + ه + ي + ري + د + ل) اِپ. مص لا] ازارېدل. کړېدل. دلګير کېدل.

په خاطر مې غم د يار دے زهيرېږم
اندېښنه ئې د هجران کوم وربېږم خ ، م ، ب

**زهيرېدلي**:- (ز+ه + ي +ري+د+ل+ي) اِپ. مف. ج. وا. زهيرېدلے] خفه دلګير. غمژن.

چې په کام د زمري کنبيوزي څۀ ئې حال وي
هغه حال وي د هجران د زهيرېدليو حافظ

**زهيرېدنګ**:- (ز + ه + ي + ري + دَ + ن + ګ) اق. حمص] و ___ هير يدنه.

**زهيرېدنه**:- (ز + ه + ي + ري + د + نَه) [پـه. حمص] غمژن کېدنه. ازاديدنه.خفه کېدنه. زهيرېدنه.

**زهيرېــــدونکے**:- (ز + ه + ي + ري + دو + ن + کــے) [پــه. فــاع. مــذ: ج زهيريـدونکي مـؤ: زهيريـدونکې] غمـژن کيـدونکے. ازاريـدونکے کړېدونکے، دلګير کيدونکے.

**زهيريده**:- (ز + ه + ي + ري+ ده) اِپ. حمص] و ___ زهيريدنه.

**زئ**:- (زَ + ئ) اِپ. ص]انسب. قبيله. لکه دې په زئ څوک دے؟

**زئ**:-(ز+ئ) [مخفف دزه + ئ]

**زئ**:- (زَ + ئ) اق. اِس.مؤ] ژئ. غاړه. څرمه. جئ.

**زے**:- (زَ + ے) [ق. اس. مذ] د اوبو مشک. زک. ژے.

**زَے**:- (زے) [پ. لاحقه] د پښتنو قومونو او قبيلو د نومونو په اخر کنبې راځي لکه يوسف زے. په معني د اولاد يعني د يوسف اولاد.

**زے**:- (زے) (مرکب) د زه ئې مخفف دے په شعرونو کنبی راځي.

خون کوي ژبه پښتو
چې زے ليکم په کاغذو غاړه

**زيا**:- (ز + يا) اق. اَس. مذ]خبر. اطلاع. حال.

**___ نيول**:- اِص. حال احوال معلومول. تپوس کول.

**___ ورکول**:- اِص،خبرورکول. خبرول.

د سحر نسيمه ! زيا دلدار راکه
خبردار مې په منزل او په ماواکا ع ، ر ، ه

**زيات**:- (ز + يا +ت)اص.مذ.مؤ: زياته. ج: زياتے ](۱)ډير .(۲) بې کچه(۳) اکثر

**___ توب**:- (زيا + تو + ب) و ___ زياتوالے.

**___ څۀ**:- زيات نه زيات زيات څخه زيات. (څۀ د څخه مخفف دے)

**___ دم وهل**:- اِص،ډيرې خبرې کول

رد دي که مقبول دي که معقول دي که نا معقول دي
ګوره نندارہ کړه تر دا دم مه وهه زيات خوشحال

**___ نه زيات**:-په زياتوالي کنبې اخري حد چې ددې نه زيات (څيز وغيره نه شي کېدے.

**___ وال**:- (و+ا + ل) (___زياتيګر) زيادتي کوؤنکې حق نه تيريدونکې. زور ظلم کوونکے. تجاوز کوونکے.

**___ والے**:- (___وا + لے) زياتوب، کثرت، ډېروالے، پريواني.

**___ وکم**:- اص،(۱) کمي بيشي. دې يو خاص مقدار نه څۀ قدرې کم يا څه قدرې زيات.

**زياتره**:- (ز + يا + تَ + رَه) [پ تر] د زياده تر يا زيات تر. مخفف. ډېر.کثير. ډېره برخه لکه د لارې زياتره برخه دريل ګاړي ده.

**زياتل**:- (ز+يا+تَ+ل) اِپ. ق. مص] زياتول. لکه وئي زياته.

**زياتوب**:- (ز + يا + تو + ب) اِپ. مؤ] (د رايو په زياتوب. کثرت. زياتوالي)

**زياتول**:- (ز + يا + تَ + و + ل)اِپ. مص مت] (۱) ډيرول (۲) اوږدول (خبره) (۳) وده ورکول لکه زراعت زياتول. (۴) ترقي ورکول (کاروبارته)

**زياتونګ**:- (ز + يا + ت + وَ + ن + ګ) اق. حمص] و ___ زياتونه.

**زياتونه**:- (ز+يا+ ت + ؤ+ نَـه) [پ. حمص] (۱) زياتونګ ډيرونه. (۲) اوږدونه (خبره) (۳) ترقي ورکونه (کاروبارته)

**زياتوونکے**:-(ز+يا+ تَ+ وو+ن+ کَے)اِپ. فاع مذ. ج: زياتوونکي. مؤ. زياتوونکې] (۱) ډېروونکے (۲) اوږدونکے (خبره)(۳)ترقي ورکوونکے. (کاروبارته)

**زياتي**:- (ز+يا+ ت+ ي) اِپ. ص](۱)تيرے. فالتو چې د ضرورت يا دانداز ې نه زيات وي. ___سيوا. (۲)نور. ددې نه زيات (لکه زياتي به څه نۀ وايم!) (۳) پاتې (لکه زياتې شي).

**___ خور**:- اِص،هغه کس چې د خپل حق نه زياته برخه غواړي. يا وصوله وي.

**___ کول**:-اِص،پاتې کول. سيوا کول.

ـــــ **کېدل**:- اصِ. سيوا کېدل. پاتې کېدل.
**زياتے**:- (ز + يا + تَے) [اپ. ص. مذ] زور. ظلم ـ جبر ـ تجاوز ـ
ـــــ **کول**:- اص، (۱) جور يا ظلم کول. بې انصافي کول. جبر کول. (۲)حق وهل (د چا) تجاوز کول. (۳)خفه کول.
ـــــ **کېدل**:ـ اص. زور ظلم کېدل. جبر کېدل. تجاوز کېدل.
**زياتيدل**:- (ز+يا+ تي+ د + ل) [اپ. مص لا]. زياتي کېدل. پاتې کېدل. ډېريدل. تجاوز کول.
**زياتيدنگ**:- (ز + يا + تي + دَ + ن + گ) [ق. حمص] و ـــــ زياتيدنه.
**زياتيدنگ**:- (ز+يا+تي+د+نَ+گ) [اپ. حمص] ډېرېدنه. پاتې کېدنه. بچ کېدنه. زياتي کېدنه. زياتيده. تجاوز کونه.
**زياتيدونکے**:- (ز + يا + تي+ دو + ن + کَے) [اپ. مف. مذ. ج. زياتيدونکي. مؤ: زياتيدونکې] ډېريدونکے. زياتي کېدونکے پاتې کېدونکے. تجاوز کوؤنکے.
**زياتيدهٔ**:- (ز + يا + تي+ ده) [اپ. حمص] و ـــــ زياتيدنه.
**زياتيگر**:- (ز + يا + تي + گ + ر) و ـــــ زياتوال.
**زياد**:- (ز+يا+ د) [ف. صف] په پښتو کښې زيات استعمالېږي چې دال "د" په تے "ت" بدل شوے دے. (دا بدلون په ډېر و ژبو کښې ډېر عام دے).
**زيادت**:- (ز + يا + دَ + ت) [ع. اس] زياتے. زياتوالے. ډيروالے. کثرت. افراط. زياتونه.
**زياده گو**:- اص (ف تر. صف) زياتې خبرې کوونکے. د ضرورت نه زياتې خبرے کوونکے. فضول گوے.
**زيادول**:- (زِ + يا + دَ + ؤ + ل) [او ـــــ زياتول]
**زياده**:- (زِ + يا + دَ) [او ـــــ زيات]
**زياديدل**:- (زِ + يا + دي + د + ل) و ـــــ زياتيدل.
**زيار**:-(ز+يا+ر) [اپ. اس. مذ] (۱)کوښښ، محنت خواري. (۲) افسوس ـ ارمان.
ـــــ **ايستل**:- اص. محنت کول. کوښښ کول.
ـــــ **ايستونکے**:-(ا +ي+ س + تو + ن + کے) محنت او کوښښ کوونکے.
ـــــ **کښل**:- اص. محنت کول. تکليف برداشت کول.
ـــــ **کول**:-اص. (۱)محنت کول. خواري کول. (۲) ارمان او افسوس کول.
**زيارت**:- (زِ + يا+ر+ت) [ع. اس. مذ. ج. زيارتونه] (۱) ديدار ـ ملاقات (۲) د چا بزرگ يا ولي مزار.
ـــــ **کول**:- اص، (۱)فاتحه او دعا کول. (۲)ملاقات کول. د چانيک سړي ليدل.

همره خلق ئې زيارت که پس له مرگه
چې بازار وي په مزار د درويشانو رحمٰن بابا

ـــــ **گاه**:- (ف تر. مو: ج زيارت گاهونه) د زيارت ځاے. هغه ځاے چرته چې د چا بزرگ ولي قبر وي چې خلق ئې تبرکاً ليدو له ځي. ستانه. درگاه. روضه. مقدس ځاے.
**زيارت کاکا صاحب**:- اس معرفه د پېښور په تو ښار تحصيل کښې د مشهور ولي حضرت شيخ رحمکارؒ مزار. کلي هم په دے نوم مشهور دے.
**زيار سے**:- (ز+يا+ر+ سے) [ا. ق] زيرک. هوښيار.
**زيار کښ**:- (ـــــ کَ + خ/ش) [اپ. اس ص. مذ. مؤ. زيارکښه. ج. زيار کښي] محنت کوونکي. کوښښ کوونکې.
ـــــ **کښي**:- پ.اس.مؤ] محنت ـ خواري ـ کوښښ. زيارنه.
**زيارنه**:- (ز + يا + ر + نَه) [اپ. اس.مؤ]او ـــــ زيار کښې.
**زيارړه**:- (ز+يا+ رَه) [اپ. (ب:خ) اس. مؤ. وا. ج: زيارړې. کنځلځ شکنجا. ښيره. زيرهازيارړه. زيارړې کول. (ب. خ) اص. کنځل کول. شکنجا کول. ښيرې کول. بددرد وئيل.

**زيام**:- (ز + يا + م)مخفف د زهٔ. وايم يا زهٔ وايم.
**زيان**:- (ز + يا + ن) [ف.اس.مذ] (۱) تاوان. نقصان. (۲) د وخت نه مخکښې د ماشوم پيدا کېدل.
ـــــ **رسول**:- اص. نقصان رسوول. تاوان کول.
ـــــ **رسېدل**:- اص.نقصان رسېدل. تاوان کېدل.

همره زيان له خرس و خو که نهٔ رسېږي
لکه ځوک په آدميانو کښې بد خوئي شي رحمٰن بابا

ـــــ **زوال**:- اص نقصان او تاوان ـ بيلات ـ
ـــــ **کول**:- اص.نقصان کول. تاون کول.
ـــــ **کېدل**:- اص. (۱) نقصان کيدل. تاوان کيدل. (۲)د وخت نه مخ کښې د ماشوم پيدا کيدل.
**سود او** ـــــ:- اص،نفع نقصان. گټه بيلات.

ما قبول د رقيب ناز کړو ستا د پاره
سود و زيان په دا جهان کښې خور و رور دي رحمٰن بابا

ـــــ **اور**:- (ـ ا+ ؤ + ر) [ف تر. صف. مذ، مو. اوره. ج. اوري] تاوان يا نقصان راوستونکي. هغه کار يا څيز يا سړے چې د نقصان او تاوان باعث گرځي.
ـــــ **رسوول**:-نقصان رسوول. تاوان رسېدل. تاواني گېدل.
ـــــ **کار**:- (ـ کا + ر) [ف تر. صف] (۱)هغه سړے چې د تاوان او نقصان کار کوي. (۲)نقصان يا تاوان موندونکے. نقصان يا تاوان رسوونکے.

پټ راز چې ځرگند که و اغيار ته د لوط ښځې
سخت عذاب تيار شهٔ د زيان کار د سر زنش ته حافظ

ـــــ **کاري**:- (ـ + کا + ري) [ف تر. اس، مو: ج. کارياني يا کاري] د نقصان يا تاوان کار کوونه.
ـــــ **من**:- (ـ + م + ن) و ـــــ زيان مند.
ـــــ **مند**:-(م+ ن + د) [اپ. اس ص. مذ. مؤ: زيان منه ج: زيان منې] نقصان ـ تاوان زيان من (مند)
ـــــ **کېدل**:- اص،تاواني کېدل. نقصان موندل.
**زيانمنتوب**:- (ـــــ + تو + ب) [اپ. اس.مذ]تاوان ـ نقصان ـ خساره.
**زيانول**:- (ز + يا + ن + ؤ + ل) [اپ. مص مت] (۱)نقصان کول. تاوان کول. (۲)کچه ماشوم غورځول.
**زياتدنگ**:- (ز + يا + ن + دَ + ن + گ) [ق. حمص] و ـــــ زياتونه.
**زيانونه**:- (ز + يا + ن + ؤ + نَه) [اپ. حمص]. (۱)نقصان کوونه، تاوان کوونه (۲)کچه ماشوم غوروي.
**زياني**:- (ز + يا + ني) [اپ. ص] (۱)زيان من. نقصاني. تاواني ـ هغه کار يا څيز چې په کښې زيان او نقصان وي (۲)زيان يا نقصان والا (۳) هغه ښځه چې کچه ماشوم ئې غورزولے وي.
ـــــ **کول**:- په نقصان کښې اچول. تاوان کښې اچول. تاواني کول.
ـــــ **کېدل**:- زيان کښې راتلل. نقصان يا تاوان موندل.
**زيانيدل**:- (ز +يا+ني+ د+ل) [اپ. مص لا] (۱) نقصان کېدل. تاوان کېدل. (۲) کچه ماشوم غورځېدل.
**زيانيدنگ**:- (ز + يا + ني + دَ + ن + گ) [ق. حمص] و ـــــ زيانيدنه.
**زيانيدنه**:- (ز + يا + ني + د + نَه) [اپ. حمص] (۱) نقصان کېدنه ـ تاوان کېدنه (۲) کچه ماشوم پيدا کېدنه ـ زيانيدهٔ.
**زيانيدونکے**:- (ز + يا + ني + دو + ن + کَے) [اپ. مف.مذ. ج. زيانيدونکي. مؤ: زيانيدونکې] (۱) نقصان کېدونکے تاوان کېدونکے. (۲) کچه پېدا کېدونکے.

**زیانیدۀ**:- (ز + یا + ني + ده) [پ. حمص]و ___ زیانیدنه.
**زېب**:- (زَ ے+ ب) [ف.]ښائست . ښکلا. زینت. ارائش.
___ **بخش**:- ښائست ورکوونکے. ښکلا بخښونکے.
___ **کول**:- اِص.ښائسته ښکاریدل. ښکلا کول.

هر هم جنس د خپل هم جنس سره جوړه وي
زېب کـا هـــره کشیده پـــه خـپـل رنځور رحمٰن بابا

___ **ګر**:- (ـِ ګ + رَ) [ف. تر. اس. مذ. ج: ګران. مؤ: ګره. هغه سړے چې زیبائش وورکوي. اراسته کوونکے ښکلا ورکونکے.
**زېبا**:-(زَ ے+ با) [ف. ص] (۱)زیب لرونکے. ښکلے. ښائسته(۲) موزون. مناسب.

د ګوهرو لړ شي هر تار ئې له زړونو
چې زلفین پـه زېبا مـخ باندې د وتا کا سعید خټک

___ **رو**:- (رو) [ف تر. صف] ښکلے مخ لرونکے. ښائسته. ښکلے .
___ **سرشت**:- (___ سَ + رِ + ش + ت) [پ تر. صف] هغه سړے چې عادت او فطرت ئې ښه او ښکلے وي.
**زیبانکه**:- (زي + بـا + نَ + کـه) [ق. اس. مؤ] داوسپنې میخ چې د ژرنـدې د پـل لاندې وي او هغه پرې چورلي.
**زیبـائش**:- (___ زي+بـا+ئِ + ش) [ف تـر. مـذ] (۱) زیـب ورکوونـه. ښـکلے ښکاریدنه. (۲) ښکلا. ښائست ـ ارائش.
**زیبـای**:- (ز+ ی + بـا + ئ) [ف . تر]زیبـائش. زیـب ورکونـه. ښـکلے ښـکاریدنه ښکلا. ښائست.

مخ ئې کله د یوسف غوندې زېبا دے
د یوسف تر مخ ئې زیاته زېبائي ده خوشحال

___ **کول**:- اِص. ښائسته ښکاریدل. زېب ورکول ـ

پِه جامه چې د زربفت څوک رعنائي کا
د ملخي لباس هم هسې زېبائي کا سعید

**زیـــب زینـــت**:- (___ زِی + نَ + ت) [ف ص. مـــذ] ښائســـت او ارائـــش. ښـــۀ ښکاریدنه او ښکلا (ورکونه) (۲) ډول سنګار. ارائش او خائست.
[illegible]

د سر کښېو سرکه ور شي تر آسمانه
په دوه ورځې پس ئې ځاے زېرِ زمین دے    حافظ

**ــــ زور لګول**:- اص. په عبارت کښې په حرفونو د پاسه یا لاندې د تلفظ علامتو نه لګول. زیر او پیښ علامتونه لګول.

**ــــ سایه**:- (ــــ سا + یَه) [ف.مر] (۱) د سورې لاندې. د سوېرې لاندې. په سر پرستۍ کښې. په مرسته په امداد په پنا کښې. (۲) په ګاونډ کښې. په ګوانډ کښې.

**ــــ شمشیر**:- (فا تر. اس. مذ (۱) دتورې لاندې. قتل ته نزدې. (۲) د حکم لاندې. محکوم.

**ــــ کول**:- اص (۱) لاندې کېدل. راپرزول. (۲) مغلوب کول.

ملک د هند او د حبش ئې واړه زېر که
چې پېدا شو شهریار د دروېشانو    رحمٰن بابا

**ــــ کېدل**:-(۱) لاندې کېدل. راپرزول. (۲) مغلوب کېدل.

شېر زمرے که چاته په زور زېر شي پائے د مور شي
مرګ ته ئې زور ورک خوراک د کومو د وینو شي
حافظ

**زیرِلب**:- (ــــ + لَ + ب) [ف تر] (۱) د شونډو لاندې. پټ ډېر ورو. په ډېر نرې اواز (خبره) (۲) په داسې انداز په ښکاره یا په اسانه نه شي لېدے (لکه زیر لب مسکا).

**ــــ خندا**:- (ــــ + خَ + ن + دا) هغه خندا چې اواز ورسره نهٔ وي. پټه غوندې خندا. په شونډو کښې موسېدل.

**ــــ ویل**:- اص. د شونډو لاندې خبره کول. ډېره ورو خبره کول.

**زیرِ مشق**:- اص (فا تر) (۱) د مشق لاندې. هغه څیز یا کار چې بیا بیا کولو سره مهارت حاصل کولے شي. لامشق ختم شوے نهٔ وي. (۲) (بغیر اضافت نه) هغه تخته (پخوا به د څرمنې نه جوړېده) چې د خط د مشق د پاره د کاغذ نه لاندې کېښودے شي.

**ــــ نظر**:- (ــــ نَ + ظَ + ر) [مف ص] د نظر لاندې چې په نظر کښې وي. معامله یا مسئله چې غور او بحث پرې روان وي. (۲) چې په نظر کښې وساتلے شي. په نګرانۍ کښې. په توجه کښې.

**ــــ نګین**:- (ــــ + نَ + ګي + ن) [ف. مر] (۱) دنګین (غمې) لاندې. (پخوا به د باشاهانو په خاص مهر کښې غمے لګیدلے وۀ. په فرمانونو او حکمونو به دغه مهر لګولے شو. د حکم لاندې. محکوم رعیت. (۲) هغه ملک چې د کوم بادشاه په بادشاهۍ کښې شامل وي.

**ــــ وبالا**:- (ښکته پورته. لاندې باندې.

**ــــ وزبر**:- (ــــ و + زَ + بَ + ر) [ف تر] [زیر او زوره (کسره او فتحه) زیر د حرف لاندې لګولے شي او زور د حرف د پاسه. ښکته او پورته. لاندې باندې.

**زیر و زبر کول**:- اص. لاندې باندې کول. دلاندې څیز بره کول. او د بره څیز لاندې کول. اړول راړول. ګډو ډ کول. تباهي راوستل.

خلک ډېر زېر و زبر کړل    خوشحال

**زیر ـ و زبر کېدل**:• اص. (۱) د زیر د زبر کول لازم لاندې باندې کېدل. درهم برهم کېدل. (۲) برباد ېدل. تباه کېدل.

نۀ آسمان څنې خبر دے نۀ دا مزکه
چې عالم شۀ په طوفان زېر و زبر    خوشحال

**زیر ــــ وزور لوستل**:- اص. سبق لوستل.

**زیر زورپه ـ پوهول**:- اص پوره پوره پوهول. په ټولو باریکو او اهمو خبرو پوهول.

**زیرپه زورنه پوهیدل**:- په هیڅ نۀ پوهیدل. ان پړه جاهل سړي په حقله وئیلے شي.

**زیر**:- (زی + ر) [ف. اس] (۱) تت، نرے اواز. (۲) په ساز کښې د لاندې درجې سره (۳) دتار والا سازونو کښې لنډ تار. د دَ بم په مقابله کښې) (۴) د موسیقۍ د یوې پردې نوم دے. (۵) ښکته. کوز (و ــــ زیر)

مطرب راته له ورایه په تارونو لیندئ اېښې
په بم په زیر جا روزي مونږ ئې محو په نوایو    حافظ

**زیر اوبم**:- په سازونو کښې د نرې او غټ اواز تارونه یا پردې.

**زیر**:- (زی + ر) او ــــ څیرا]

**زیرک**:- (زی + رَ + ک) [ف. صف. مذ، زیرک، زیرکان مؤ: زیرکه. ج: زیرکې] هوښیار. تیز فهم. په خبرې زر رسېدونکے. عقلمند. دانشمند.

**زیرکي**:- (زی + رَ + کی) [] ف اس: مؤ، ض: زیرکې] هوښیارتیا. عقلمندي. تیز فهمي. د خبرې تل ته د زر رسېدو پوهه. زیرکي.

**په ــــ پړول**:- اص په چل ول او هوښیارۍ سره پړول.

**زیرګے**:- (زے + ر + ګے) [پ. اس.مذ و ــــ زګیروے.

**زیرمه**:-(زے+ر+مَه) [پ.اس.مؤ.ج: زیرمې] (۱) ذخیره. پاسره. ځورے. توشه (۲) فکر. غم.(۳) خبر ګیري.

بېدا شه زیرمه دلوے سفر کا
نیت در خپل د تا کاروان که    سعید ختک
خداے دې رزق په زیرمه مه هېروه کلک شه
تر سرې د سرې رزق مقدم    رحمٰن بابا
دا همه واړه شومیت دے د شومانو
ګنه تۀ د چا په زیرمه نۀ ئې ستړے    رحمٰن بابا

**ــــ کول**:- اص، (۱) فکر کول. غم کول (۲) جمع کول. ذخیره کول. (ا:ق) (۳) خبر ګیري کول.

د رحلت زیرمه کوه اقامت نشته
شاید نۀ دې وي حیات ساعت ګړي    سعید ختک
راته وائي زیرمه اوکړه بیا به ارمان کړې
مونږه اوکړه په تا باندې آګاهي    خواجه محمد بنګش

**ــــ نیول**:- اص. حال تپوس کول.

**زیرمه په ــــ کېدل**:- اص. فکر کول. غم کول.

**زیرمه دَخداے په ــــ کېدل**:- اص. خداے پاک ته حواله کول. یعني مسافر. خداے ته سپارل.

**زیرمه د خداے په ــــ پرېښودل**:- اص. خداے پاک ته حواله کول. د خداے پاک په خبر ګیرۍ کښې ورکول.

**ــــ تون**:- (ــــ + تو + ن) [پ. اس ص. مذ] هغه ځاے چه څیز ونه پکښې جمع کولے شي. ګودام مال خانه

**ــــ خور**:- (ــــ خو+ر) [ق. اس ص. مذ. مؤ: زیرمه خوره. ج: زیرمه خورې] موبې. نګران ـ طرف دار ـ

**ــــ وال**:- (وا+ل) [اس ص. مذ] (۱) توشه لرونکے (۲) فکر کوونکے. غم کوونکے.

**زیرمې**:- (ــــ + م + ئ) [ق. اس. مؤ] یو قسم ابي مارغه.

**زیرنے**:- (زي+ رَ + نے) [ق. اس.مذ: زیرني: مؤ زیرنۍ] (۱) د شپې پاتے شوے. (۲) د پیر یا ګل ورځ.

**زیرول**:- (ز + ي + رَ + ؤ + ل) [پ. مص مت] او ــــ ځیرول.

ځان مې زیراؤۀ په ناقابل پورې بې ځایه
زاغ به په تعلیم د شکار، باز شاهین نۀ شي    حافظ

**زیره**:- (زِ + ي + رَه) [فا. اس. مؤ] ځیره. یو قسم ګرمه مصالحه.

**ـــــسفید**:- اِص (ف. مر. مذ: سپینه زیره. د زیرې یو قسم (عام زیره توره یا توربخنه وي)

**زیره**:- (زی + ر ه) [اس. مؤ] ږیره.

**زیرے** :- (زي + رَے) [پ. اس. مذ. ج: زیري] د خوشحالۍ خبر. خوشخبري.

چې قاصد د ورک یوسف زیرے پرې اوکړ
د یعقوب د سترګو بیا نظر پیدا شو        رحمٰن بابا

**ـــــکول**:- اِص. د خوشحالۍ خبر ورکول. زیرے ـــــ (ور) وړل (چاته) چاته د خوشخبرۍ پیغام رسوول. 'ن بابا

**ـــــګـرےوال**:- (ـــــ + ګ + رِه) (ـــــ وا + ل) خوشـخبري ورکـوونکے. د خوشحالۍ خبر رسوونکے.

**زیړ**:- (ز + ي + ړ) [پ. ص. مذ. مؤ: زیړه، ج: زیړے پیتل. زیړ.]

لکه مخ زما د یار دے نمر خو هسې وي کنه
لکه زۀ په عشق کښې زیړ یم زیړ خو هسې وي کنه    خوشحال

**ـــــبخن**:- اِص- لږ غوندې زیړ. زیړ رنګ ته ور نژدې- پیکه زیړ. زیړ غلن.

**ـــــپړونے**:- اِص. هغه ښځه چې زیړ څادر ئې په سر کړے وي- د زیړ پړوني میر من-

که عصمت زتوت نۀ وي واړه اوسېزه په اور کښې
چې په خیال په هوا ګرځي زیړ پړونے سر پنډوسے    خوشحال

**ـــــپوستے**:- (ـــــ پو + س + تے) (صف. مذ. مؤ) (۱) هغه خلق چې د څرمنې رنګ ئې زیړ وي. لکه د چین خلق. (۲) هغه سړے چې د مخ رنګ ئې (د بیمارۍ وغیره) په وجه زیړ شوے وي.

**ـــــخیتے**:- (ـــــ خے + تے) چې زیړه خیټه ئې نیولے وي. مرض وهلے یا کمزورے (ددواوې زیړ خیټي)

**ـــــرنګه**:-د زیړ رنګ والا. لکه زیړ رنګه ږیره - په نکریزو رنګ شوې. (سور بخنه)

**ـــــزبیښ** (ـ ز + بي + خ/ش + لے) زیړ او مړاوے. لکه د مرض وغیره نه پس د مخ رنګ زیړ شي او ورسره مړاوے او کمزورے هم ښکاري.

**ـــــسترګے**:- (س+ت+ر+ګے) هغۀ مارغۀ چې سترګې ئې زیړې وي. داسې مارغان عموماً د ښکار مارغان وي. لکه باز- شاهین. جره. باښه وغیره

**ـــــغلن** (غَ + ل + ن) [صف. مذ. مؤ. غلنه. ج: غلنې]و ـــــ زیړ بخن.

**ـــــکونے**:- (ـــــ + کو + نے) [اس. مذ] هغه بلبل یا بلبله چې د کونې نه چار چاپیره بڼې ئې تکے زیړې وي. (د سور کونې په مقابله کښې)

**ـــــګونے**:- (ګو + نے) زیړانګے چې د مخ رنګ ئې زیړ شوے وي.

**ـــــمخے**:- (ـــــ + م + خے) (۱) چې د مخ رنګ ئې زیړ وي. بیمار- (۲) ویریدلے. ترهیدلے سړے چې رنګ ئې وتښتي. (۳) شرمیدلے چې د شرم یا ضیا نه ئې رنګ تښتیدلے وي. (۴) عاشق-

**ـــــپاڼه زیړه کېدل**:- مرګ ته نژدې کېدل. مرګ راتلل.

**ـــــګونه تښتېدل**:- رنګ زیړ ېدل- سختې ویرې اخېستل.

**زیړه څیره**:- اِص. بیمار. کمزورے چې د وینې کمې په وجه ئې ګونه زیړه شوې وي.

د یار په غم کښې زیړه څهره خوښ یم
دا زما خزان ، خزان نۀ دے سپرلے دے        رحمٰن بابا

**زیړه ګونه نیول**:- زیړ مخ نیول. په رنګ زیړېدل. ډېر زیات کمزورے کېدل.

**زیړانکه**:- (ز+ي+ ړ+ا + ن + کَه) [اَس. مؤ] یره زیړانګې مرغۍ. زیړکه ژیړانکه-

**زیړدالان**:- (ـــــ دا + لا+ ن) [ق. اِس. مذ] شلتا لان. زرد الو. زیړ غنجي.

**زیړ سورن**:- (ـــــ + سو + ر + ن)[ق. اِس. مذ] زیړ سوراس.

**زیړغلن**:- (ـــــ غ + ل + ن) [پ. ص. مذ. مؤ: زیړ غلنه] و ـــــ زیړ بخن.

**زیړ غنجي**:- (ـــــ + غ + ن + جی) [ق. اِس. مذ] و ـــــ زیړدالان.

**زیړکه**:- (زي + ړ + کَه) [ق. اس. مؤ] و ـــــ زیړانکه-

**زیړ ګل**:- (ـــــ ګ + ل) [پ. اِس. مذ] و ـــــ زیړے ګل.

**زیـړن**:- (ز+ يَ + ړ + ن) [صف. مذ. مؤ. زیړنه. ج: زیړنې] هغه اس چې رنګ ئې تقریباً زیړ وي. زیړرنګے اس.

**زیړو**:- (زے+ ړو) [ق. اِس. مؤ] ژیړو. د معشوقې د پاره وئیلے شي.

**زیـړو**:- (زي+ړو) [ق. اِس ص مذ]د زیـړ رنـګ سـړے- هغـه څـوک چې زیـړے (یرقان) ئې وي.

**زیړوب**:- (زے + ړو + ب) [ق. اِس. مذ] زیړے اوبۀ. زوه-

**زیړوتے**:- (ز+ي+ړو+ تے) [ق. ص. مذ] زیړ بخن.

**زیـړول**:- (ز + يَ + ړ + و + ل) [پ. مـص مـت] (۱) زیـړ رنـګ ورکـول. زیـړول. (۲) مړاوے کول.

**زیـړول ـــــ پر توګ**:- په پر توګ کښې غول کول. د ویرې غول کول. ډیرې سختې ویرې اخېستل.

**زیړونے**:- (زي + ړو + نے) (و ـــــ ژیړونے)

**زیـــړه**:- (ز + يَ + ړه) [پ. ص. مـؤ: ج زیـړې] (۱) زیـړ تانیـث (۲) کنځـل. بدردوئیل.

**ـــــوراړول**:- (و ـــــ ژیړه وراړول)

**ـــــزرغونه**:- (ـــــ ز + ر + غو + نه) [پ. اِس. مؤ] د بوډۍ تال. شنه او زرغونه - سره وزرغونه.

**زیـړه**:- (زے + ړَه) [اِس. مـذ] (۱) د خټکـو د یـوې قبیلـې نـوم دے. (۲)د زیـړ تانیث.

**زیړۍ**:- (ز + ی َ+ ړ + ئ) [اس. صف. مو] د زیړه تصغیر. وړه زیړ رنګے.

**زیړۍ**:- (ز + ی َ+ګ+ ئ) [و ـــــ زیړے]

**ـــــتبه**:- (ـــــ تَ + بَه) [پ تر. مو. ج: تبې] د ملیریا تبه. موسمي تبه. د مني تبه

**زیړے**:- (ز+ ی َ+ ړه) یرقان. زیړي تبه-

**ـــــکېدل**: – اِص، (۱) د زیړي په بیمارۍ کښې ګېریدل. یرقان کېدل-(۲) زیړ رنګ کېدَل. زیړ ېدل.

لکه شمع د سحر آفتاب د ژمي
هم بې تاب د هم زیړے شي په پیړۍ کښې        رحمٰن بابا

**ـــــلګېدل**:- (په چا) د زیړي مرض لګېدل. یرقان کېدل.

**دزیړي مرض**:- مشهور مرض چې سړي رنګ پرې زیړ شي. یرقان-

**زیړې**:- (ز + يَ + ړه) [پ. اِس. ج: وا: زیړه] کنځلې. بدرد وئیل زیاړې.

**ـــــاړول**:- (و ـــــ ژیړې اړول.

**ـــــکول**:- اِص. کنځلې کول. بدرد وئیل. په خوله برنا حق هر چاته زیړې کول-

**زیړیدل**:- (ز + يَ + ړے + د + ل) [پ. مص لا] (۱)زیـړ رنـګ کېدل. ژیړیدل. (۲) مړاوے کېدل

**زیړ یدل. شړشم**:- د شړشم زیړ ګلونه غوړیدل. د شړ شمو فصل پخېدل.

**زیـړے شـیخ رحمکـار**:- اِص. مشـهور ولـي چې عموماً د کاکا صاحب په نوم یادېږي په کوم کلي کښې چې ښخ دے، هغه د زیارت کاکا صاحب په نوم بللے شي.

**زیړے ګل**:- (ز + يَ + ړه + ګ + ل) [پ. اِس. مذ] هغه خودرو ګل چې زیړ رنګ لري او سپرلي کښې راپیدا کېږي.

ښۀ چې راپیدا شوے د بهار زیړیه ګله
تل دې یادونه عندلیب په هر نفس کړم        خوشحال

**زيړبن**:-(ز+ي+ړي+ن) اصف. مو: زيړينه ج: زيړينې] هغه څيزونه (لوښي) پرزې وغېره) چې د زيړو (پيتلو) نه جوړ شوے وي.

**زيړي نمر**:- (ز+ي+ړي+ن+م+ر) [اپ. اس ص. مذ] (۱) د مازيگر د وخت نمر چې رنگ ئې زيړ شوے وي. پريوتو نکے نمر. (۲) کنايه ده د زوړ عمر يا د عمر زوال.

**زيږ**:- (زي + گ) [اپ. مذ] پيدا وښت.

**زيږ**:- (ز + ي + گ) [اپ. ص. مذ. مؤ: زيږه]استغ. سخت، ځيږ.

**ـــ توب**:- (ـــ + تو + ب)

**ـــ تيا**:- (ت + يا) سختوالے. د رشتي. زيږوالے. ځيږ توب.

**ـــ زبان**:- اص. ستغه ژبه. سختې او خرابې خبري کوونکے ژبه. بده ژبه.

**زيږگے**:- (زي + گ/ژ + گے) [اپ. اس.مذ] شرگے. زيږگے. شيزگے.

**زيږمه**:- (زي +گ + مَه) [اپ. اس.مؤ]ځيزمه. د بنيو لاندې څرمن.

**زيږنتون**:- (زي+ گ+ن+تو+ن)[ق.اس.مذ] زيږنځے. د ښځو دپاره هغه هسپتال چرته چې د ماشوم پيدا کېدو په وخت داخلېږي.

**زيږنځے**:- (ز ي + گ + ن +ځه) [اس.مذ] و ـــ زيږنتون.

**زيږنده**:- (زي + گ + ن + دَه) نتيجه ورکول.

**زيږنده**:- (زي+ گ+ ن + دَه) [ق. اس.مؤ.ج: زيږندې]چشمه.

**زيږنه**:- (زي+ گ+ نه) [ق.اس.مؤ] هغه زمکه چرته چې چشمې وي.

**زيږوالے**:- (ـــ +وا +لے) [اپ. اس.مؤ]و ـــ زيږ توب.

**زيږول**:- (زے + گ + ؤ + ل) [اپ. مص مت] ماشوم پيدا کول.

**زيږول**:- (زى + گ + ؤ + ل) [اپ. مص مت] سختول.

**زيږونگ**:- (زي + گ + وَ + ن + گ) [ق.حمص] و ـــ زيږونه.

**زيږونگ**:- (ز + ي + گ + وَ + ن + گ) [ق. حمص] و ـــ زيږونه.

**زيږونه**:- (زي+گ+ و + نَه)[اپ. حمص] پيدا کونه (ماشوم)

**زيږونه**:- (ز + ي + گ+ ؤ + نه) [اپ. حمص]سختونه.

**زيږوونکے**:(زي+گ+وو+ن+کَے)[اپ.فاع.مذ.ج:زيږوونکي.مؤ:زيږوونکې]پيدا کوونکے.

**زيږوونکے**:-(ز+ي+گ+وو+ن+کَے)[اپ.فاع.مذ.ج:زيږوونکي.مؤ.زيږوونکې] سختوونکے.

**زيږه**:- (زے + گ + ه) [اپ. اس.مؤ] و ـــ زيږ.

**زيږه**:- (زى + گه) [اپ. ص.مؤ. دزيږ تانيث. سخته. درشته]

**زيږے**:-(زى+ گه) [اس.مذ.ج: زيږي] داوښ د خيټې موږه. (اق) تتى. زږے.

**زيږيدل**:- (زې + گي + د + ل) [اپ. مص لا] پيدا کېدل.

که ناکس له کسه وه زيږي کس نۀ شي

له بازنه نه پيدا د باز بې خال دے سعد خټک

**زيږيدل**:- (زى + گي + د + ل) [اپ. مص لا] سختيدل. درشت کيدل.

**زيږيدلے**:-(زې+گي+د+لَے)[اپ.مف.مذ.ج:زيږيدلي.مؤ.زيږيدلې] پيدا شوے.

**زيږيدنگ**:- (زې + گي + دَ + ن + گ) [ق. حمص] و ـــ زيږيدنه.

**زيږيدنگ**:- (ز+ي+ گي+د+ ن + گ) [ق.حمص] و ـــ زيږيدنه.

**زيږيدنه**:- (زې+ گي+ د + نَه) [اپ. حمص] پيدا کيدنه. زيږيدۀ

**زيږيدنه**:- (ز+ئ+گي+د+نَه) [اپ. حمص] سختېدنه. درشت کېدنه زيږيدۀ.

**زيږيدونکے**:-(زي+ گي+ دو+ن+ کَے) [اپ. مف. مذ.ج: زيږيدونکي. مؤ زيږيدونکې] پيدا کېدونکے.

**زيږيدونکے**:- (ز + ي + گي + دو + ن + کَے) [اپ. صف. مذ.ج: زيږيدونکي. مؤ. زيږيدونکې]سختېدونکے. درشت کېدونکے.

**زيږيدۀ**:- (زے + گي + دە) [اپ. حمص] و ـــ زيږيدنه.

**زيږيدۀ**:- (زِ + ي + گي + دۀ) [اپ. حمص] و ـــ زيږيدنه.

**زيست**:- (ز + ي + س + ت) [فا. اس.مذ] ژوند . عمر. حيات.

**ـــ باهمي**:- (ـــ + با + هَ + مي) يو بل سره يو ځائې ژوند تيرول. شريک عمر تيرول.

**ـــ کول**:- اص: ژوند تيرول. عمر تيرول. گزران کول.

زۀ رحمٰن د خپل صاحب په رضا زيست کړم

څۀ پکار دے بنده بې خپله صاحبه

**زيغ**:- (زَي + غ) [ع. اس.مذ] (۱)تت والے (دنظر) (۲) کږې لارې ته رغبت (۳) په کږه لاره روان. گمراه. (۴) شک شبه (۵) کوږ والے. يو طرف ته کږيدنه.

مهر مينه محبت له زړونو لاړ شو

سينې ډکې شوې هم له مسکره ذيغه خوشحال

**زيگ**:- (زى + گ) [او ـــ زيږ]

**زيگر**:- (زى + گَ + ر) [او ـــ ځيگر]

**زيگوالے**:- (زى + گ + وا + لے) [او ـــ زيږوالے]

**زيگول**:- (زى + گَ + ؤ + ل) [او ـــ زيږول]

**زيگېدل**:- (زي+ گي+د+ ل) [او ـــ زيږيدل]

**زيگه**:- (زِ + ي + گه) [اپ. ص. مؤ]و ـــ يږه. (ښۀ ئې غوښه بده ئې زيگه (متل)

**زيل**:- (زې+ ل) [اپ. اس. مذ] (۱)رسى. پړے. (۲) زنځير. پيکړے. (۳) ضد. اصرار.

الوول زلفې ئې زيل د بندو پوانو

عاشقان پکښې پراتۀ دي خاکساري کا حافظ

**زيل**:- (زَ + ي + ل) [او ـــ زيلى]

**زيلان**:- (ز+ى+لا+ ن) [ق. اس.ج. زيلانونه]رحم. د مورگېډه. بچه دانې. چشتي بوړى.

**زيلانځ**:- (زي + لا + ن + ځ) [ق. اس.مذ] د ـــ زيلان.

**زيلوچه**:- (زي+ لو + چه) [ق. اس.مؤ] قالينچه.

**زيله**:- (زي + لَه) [اپ. اس.مؤ.ج: زيلې] (۱)ريشه. جرړه. (۲) نسل. خاندان

**زيلى**:- (زي+ ل + ي) [اپ. اس.مؤ] (۱)جرړه. (۲) يوه بيماري. خناق.

**زيم**:- (ز + ي + م) [اپ. ص.مذ.ج: زيمونه]نمي. لوندوالے.

زړۀ مې سيند د فراق ډوب کړو ځکه ژاړم

چې نيز ډېر راغے کمرو ته زيم و خوت علي خان

**ـــ جنه**:- هغه زمکه چې لړه وکنستے شي نواوبۀ راوځي. اوبوسه

**ـــ کول**:- اص نمي کول. لوندېدل.

**زيمت توب**:- (زى + م + ت + تو + ب) [ق.اس] شرمندگي. خجلتوب.

**زيمته**:- (ز + يَ + م + تَه) [ق. ص]شرمنده. خجل.

**ـــ کول**:- اص. شرمنده کول. خجل کول.

**ـــ کېدل**:- اص: شرمنده کېدل. خجل کېدل.

**ـــ توب**:- (ـــ تو + ب) [ق.اس.مؤ] شرمندگي. خجالت.

**ـــ والے**:- (وا + لَے) [ق. اس.مذ]او ـــ زيمته توب.

**زيمجن**:- (ز + ى + م + ج + ن) [اپ. ص. مذ] زيمن. زيمناک. نمناک. مرطوب.

**زيمن**:- (ز + يَ + م + ن) [اپ. ص. مذ] و ـــ زيمجن.

**ـــ کول**:- (زيمجن کول.

**زيمناک**:- (ز + يَ + م + نا + ک) [اپ. ص. مذ.مؤ: زيمناکه ] و ـــ زيمجن

**زيمنه**:- (زي + م + نَه) [اپ. اس.مؤ. ج زيمنې]ښوروا. زومنه.

**زيمنه**:- (ز + يَ + م + نَهَ) [اپ. اس.مؤ] و ـــ زيمنه.

**زين**:- (زِ + ي + ن) [فا. اس.مذ.ج زينونه]د څرمنې کاټې. چې د اس په شا د بنيادم د سوريدو دپاره تړلے شي.

**زين پوش**:- اص. هغه کپړه چې د زين دپاسه غوړولے شي.

**ـــــ ساز**:- (ـــــ + سا + ز) اف تر. اس.مذ.ج. سازان. مو ـــــ سازه. ج. سازې] زینوه جوړوونکے. د زینونو جوړوونکے چمیار.

**ـــــ سازي**:- (ـــــ سا + زی) [اف تر. اسم ،مو.ج. سازۍ]د زینونو جوړولو کامیاب کسب.

**ـــــ کړے اس**:- اِص (۱) هغه اس چې زین پرې اچولے شوے وي او د سورلۍ دپاره تیار وي. (۲) مجازاً خدمت ته تیار (دوست وغېره) مستعد.

خپل تابوت درته ولاړ زین کړے اس دے
تهٔ پـه زېرمـه د بـل اس او د زین مه شه — رحمٰن بابا

**ـــــ کول**:- اِص پـه اس وغېـره زیـن کېښـودل. اس وغېـره د سورلۍ د پـاره تیارول. په اس باندې زین اچول.

چې تومن د فلک زېر کاندې له نازه
دا هلال ئې په ځاے راشي د رکاب — رحمٰن بابا

**ـــــ کېدل**:- اِص پهٔ اس یا (اسونو) باندې زین یا (زینونه) اچولے کېدل. اس یا (اسونه) د سورلۍ د پاره تیارېدل.

**زَین**:- (زي+ ن) [ع. اِس.مذ] زینت. ښکلا. ښائست. عموماً زیب سره یو ځاے راځي. ارائش. سنبالونه. ډولے کوونه.

دا زیبا جملا ئې ډېر دے زیب و زین
ولې زړهٔ نهٔ د عالم وړي په عېښن — خوشحال

**ـــــ زیبو** ـــــ:- (زینت. او ښائست. ښکلا.

د زیبا خیال ئې ډېر دے زیب و زین
ولې زړونه د عالم وړي په عېښن — خوشحال

**زینبه**:- (زي + ن + بَه) [ع. اِس. معرفه]د پښتنو زنانه و نوم.

**زینډېر**:- (زی + ن + د + نړ+ه) [اس. مذ. : ج ـــــ ی ] دغرهٔ د یوې مرغۍ نوم.

**زینګر**:- (زی + ن + ګ + ر) ډېره نه ګوېه. ډېر خلق.

**زینګوګرافي**:- (زی+ن+ ګو+ ګ+را+ في) [انګ. اس. مؤ]د چاپ کولو د پاره د زنګ په تخته باندې لیک کول.

**زینګے**:- (زي + ن + ګے) [ق. اِس. مذ]د کشتۍ یو قسم چال چې مخالف سړے ئې په خپل ځنګ کښې راواخلي اوپه زمکه ئې اولي.

**ـــــ ورته ایښول**:- اِص پیر زینګي اخېستل. په کشتۍ کښې خپل مخالف په خپل ځنګ کښې اخېستل.

**زینه**:-(زی+ نَه) [ف. اس. مؤ: ج:زینې] پوړۍ. اندر پایه. پاړځنګ. پارسنګزینه.

**ـــــ برقي**:- اِص ـــــ د بجلۍ اندرپایه.

**ـــــ حرکت کوونکے**:- (حَ + ر+ کَ+ ت+ کَ+ وو + ن+ کَے) [ هغه اندر پایه چې بجلۍ سره حرکت کوي اوښکته پورته کېږي.]

**ـــــ دبېړۍ زینه**:- اِص. د کشتۍ یا جهاز باندې د ختو او راکوزېدو اندرپایه.

**د جهاز زینه**:- (دَ + ج + ها + ز ـــــ و ـــــ د بېړۍ زینه.

**زیور**:- (زي + وَ + ر) [اس. مذ.ج: زیور. زیورات، کالے. ګاڼه. ګڼه]

بې زېوره ښائسته ئې بې ترتیبه مرتب — رحمٰن بابا

**ـــــ اچول**:- اِص. کالے یا کالي اچولي. ګېڼه یا ګڼې اچول . ځان په کالو اراسته کول.

**ـــــ تړل**:- اِص کالي اچول. ګاڼه اغوستل.

**زیوره**:- (زے + وُ + رهَ) [اس.مع] د پښتنو د زنانهٔ نوم.

**زیبر**:- (زَ + یي + ر) [او ـــــ زهیر]

**زیبرول**:- (زَ + یي + ر + وُ + ل) [او ـــــ زهیرول]

**زیبرېدل**:- (ز + یيی + ري + د + ل) [او ـــــ زهیریدل]

◈◈◈

# ژ

**ژ–ژې:-** پښتو د الفبا نولسم توری دی په عربي او په نورو ډېرو ژبو کښې نه شته ځکه عربو به ورته زې فارسي یا عجمي وې. دا توری په ځینو موقعو کښې په 'ز' هم بدلیږي. (بلکې اصل ئې 'ز') وي او په ځینو لفظونو کښې په "ج" هم بدلیږي.

**ژاپون:-** (ژا + بو + ن) [اس مع] جاپان

**ژاپونی:-** (ژ + پو + نَې) (اس.مذ.ج. ژاپوني. مؤ: ژابونې)جاپانی. جاپان ملک سره تعلق لرونکی په جاپان کښې جوړ شوی.

**ژاخ:-** (ژا+ خ) (صف) مذ.ج. ژاخي. مو. ژاخه ج. ژاخې. ځنګل شوی. الرول شوی. یو بل سره نښتی.

**ژاخو:-** (ژا + خو) [اس. وا] بد شکله. بد صورته سړی

**ژاخه:-** (ژا + خه)[اس. مو. ج: ژاخې] جاخه. لرګي پرېکړې څانګې. چې په یو بل نتوتې او نښتې وي.

**ژاړ:-** (ژا + ړ) [و___ جاړ]___ (ژا + ړ) [پ. امر]د ژړل مصدر نه د امر فعل جاړه ګریه کوه.

**ژاړ غالی:-** (ژا +ړ+غا+لَې) [اس. نه. ج: ژاړ غالي]هغه ژور کنستلی ځای. چې کوچیان او د صحرا خلق ئې په زمکه کښې جوړ کړي او په کښې اوسي.

**ژاړندوک:-**(ژا+ړ+ن+دو+ک) [اس. مذر مو: ژاړ ندوکه ج ژړندونکې] (۱)ژړندوکی. هغه ماشوم چې هر وخت یا ډېر ژاړي .(۲) ژړا ته نزدې چې خولۀ ئې ژړا ته ورانه شي.

**ژاړندوکی:-**(ژا+ ړ+ن+دَو+کی)[اس. مذ.مو.ج:ژاړندوکې]و ___ ژاړندوکی

**ژاړنده:-**(ژا+ړ+ن+دَه)(۱)ژړیدونکی[اس. مذ.مو.ج:ژاړندونکې] (۱) ژړیدونکی (۲)هغه ماشوم چې هر وخت یا اکثر ژاړي ـ(۳) ډنډ، هغه چشمه یا چینه چې اوبۀ ترې څاڅکي څاڅکي راڅاخي.

**ژاړه:-** (ژا + ړَه) [پ. امر]دَ ژړل مصدر نه دَامر فعل۔

**ژاړۀ:-** (ژا + ړۀ) [پ. مو. ج: ژاړې](۱)جاړه. ازغن بوټی یا وړه ونه (۲)جالد. په سیند کښې لاهو کولو د پاره د لرګو ختې چې یو ځای تړلی شوی وي.

**ژاژ:-** (ژا + ژ) [ف. اس]یو قسم سپین رنګی ازغن وابنۀ چې ډېر سخت او بد خوند لري ځکه اوښ چې هره بلا خوری، هم ئې نۀ شی تېرولی (۲) بېهوده خبرې عموماً سابقې په طور نورو الفاظونه وړاندې راځي.

**___خائي:-** (ف ته) بېهوده ګوی ___ خوشی بکواس کونه۔

**ژاغر:-** (ژا + غَ + رَ) [ف. اس](۱)د مرغو شاتېنګه.(۲)حوصله.صحت

**ژاله:-** (ژا + لَه) [ف.اس.مؤ]ږلی. ګلی

**___باري:-** (___ با + ري) [ف ته. مو.ج. باری]د ږلی وربدنه. ږلی کېدنه د ګلی وربدنه. ګلی کېدنه.

**ژاله:-** (زا+لَه) [اس. مو. ج: ژالې]جاله . د لرګو ختې چې یو بل سره تړلی وي او په سیند کښې لاهو کولو سره د یو ځای نه بل ځای ته وړلی شي.

**ژاله:-** (ژا + لَه) [و. جاله]

**ژامبیل:-**(ژا+م+ بې+ ل) [پ. اس.نه. ج : زامبېلونه]د ژامې یا جامې هډوکی دزامې هډوکی۔

**ژامنه:-**( ژا+م+ نَه) [اس.مواج. نې ]جامه. ژامه

آسمان زمکه دواړه ژامنې د نهنګ دي!
څۀ به زېست که څوک په خولۀ کښې د زهنګ رحمان بابا

**ژامه:-** (ژا + مَه) [اس. لو. ج: ژامې]جامه. زامه. په خولۀ کښې هغه حصه چې بره او ښکته غاښونه په کښې لګېدلي وي او خوراک سړی کولی شي.

**ژامې:-** د ژامې غاښونه په خپله کښې سره۔

**___ ګرېېدل:-** ګرېېدل ، کپېدل (د سختې یخنی له کیله)

**بره ژامه:-**(بَ+رَ+ه+ژا+م+ه)پورتنی ژامه. د ژامې برنی حصه ـ د جامې/زامې پورتنی حصه.

**کوزه ژامه:-**(کو+ز+ه) لاندینی ژامه.کوزنی ژامه۔ ښکته ژامه.دجامې یا زامې ښکتنی حصه.

**د ژامې غاښ:-**(دَ+ژا+مِ+)هغه غاښ چې په ژامه کښې راوځي ـ دجامې یاد ژامې غاښ.

**ژاندارم:-** (ژا+ن +دا+ر+م) [اس. نه]په افغانستان کښې د سورو هغه لښکر چې د ملک د نظر کار سرته رسوي.

**ژاندارمه:-** (ژا + ن + دا + ر + مَه) [و___ژاندارم]

**ژاندارمه:-** د حدودو (___ + د + ح + دو + دو) په افغانستان کښې د نظم ونسق قائم ساتلو د پاره یو لښکر چې تعلق ئې د حدونو سره وي.

**ژاندارمه:-** د ژاندارمې قوماندان.(___ قو + ما + ن + دا + ن) په افغانستان کښې د سورو د دستې چې ژاندارم نومېږی افسر ___ یا کمانډر.

**ژاندره:-** (ژا + ن + د + رَه) و ___ ژرنده/ جرنده

**ژانه:-** (ژا + نَه) [اس. مو. ج: ژانې]خوشامنده۔ برامنده۔ چاپلوسي ـ تملق۔

**ژانه/ ژانې کول:-** خوشا مندې برامندې کول. چاپلوسي کول. تملق کول.

زما زړۀ لکه مزری ؤ خاوند خدای مې
ستا د سترګو وهوسیو ته ژانې کړې خوشحال

**ژانې:-** (ژا + نَې) [اس. مؤ]د ژانې جمع (د ګوره ژانه) ژانې کول.

**ژانی:-**(ژا+نَ+ئي) [صف. مؤ]د ژانه سره متعلق.چې خوشامندو سره تعلق لري.

**ژاولن:-** (ژا+ و+لن)[پ. صف. مو، ج ژاولنې](۱)جاولن. زاولن.هغه څیز چې د ژاولې (جاولې، زاولې) په شان نرم سلیخ داراو نښتونکې وي (۲) هغه سړی چې ژبه ئې نښلي او صحیح طور سره خبرې نۀ شي کولی۔

**ژاوله:-** (ژا + ؤ + ل+ه) [اس. مو. ج: ژاولې](۱)هغه نښتونکی لېسدار/ لېشدار څیز کوم چې د شاتو د ګبین نه راوځي(۲) د ځینو ونو نه هم داسې سخته انښتونکې ماده راووځي. (۳) موم (۴) نرم نښتونکی (۵) زانګې. چیو نګم.

پــه هــر چــا بــانــدې ئې زړۀ وے لـکه ژاله
خوږې ماباندې چې راشي زړۀ ئې سنګ شي خوشحال

**ژاولے**:- (ژا+و+لے) [د ژاوله اضافي يا مجروري وغېره حالت دے.]

**ژاولے**:- ژوول(۱)داسې خبرې کول چې بل سړے نه پوهېږي.(۲)بې معنې او بې دليله خبرې کول.

**ژاولے**:- مه ژويه! صفا خبرې کوه! خبرې مه ژويه! شف شف مه کوه!

**ژب**:- (ــــ+ژ + ب) [ب. سابقه ]د ژبې مخفف دے. د سابقې په طور د نورو الفاظونه مخکښې راوستے شي لکه ژب پوهان.

**ژب**:- (بسته (ــــ ب+س+تهَ) [صف. مذ]ژبون وهلے. هغه سړے چې د ويرې ياد بل څۀ له کبله د خبرو کولو نه پاتے شوے وي ــــ زبان بسته.

**ژب**:- څانګه دلوئې ژبې يوه وړه څانګه لهجه. ژبګی.

**ژب پوه**:- (ژ+ب+پو+ه) (اس.مؤ.ج: ژبپوهې) په ژبه پوهېدنه. زبان دانی.

**ژب پولاند**:-(ژ+ب+پو+لا+ند)(د) (اس. مذ)په (يوه خاصه) ژبه پوهېدونکے دکومې خاصې ژبې ماهر. د ژبې عالم. زبان دان.

**ژب پوهنه**:- (ژ + ب + پو + ه + نه) [اس. مو.ج: پوهنې] (۱)په (کومه خاصه) ژبه پوهېدنه (۲) د ژبو عمومي علم. زبان شناسي(و ــــ ژب پيژندنه)

**ــــ پيژندنه**:- (ــــ + پے + ژ + ن + د + نَه) د ژبې پيژندل. زبان شناسي د ژبو (عمومي) په حقله علم لسانيات. علم الاسنه.

**ــــ پيژندونکے**:- (ــــ +پے + ژ + ن + دو + ن + کے) (اس.مذ.ج: ــــ کي) د ژبو د علم ماهر. د لسانياتو عالم.

**ــــ دود**:- (ــــ + دو + د) [تر. اسم. مذ.ج: دودونه]د ژبې لارې چارې . د ژبې د صحيح استعمال قاعدې. قواعد. ګريمر.

**ــــ ښودنه**:- (ــــ + خو/شو+ د+ن) [اس.مذ.ج: ــــ نې]د ژبې تعليم ورکول. د ژبې ورزده کول.

**ژباړون**:- (ــــ + ا + ړو + ن) يا (ژ + با + ړو + ن) [پ. اس.مذ]د ژبې اړول. د يوې ژبې نه په بله ژبه کښې راړونه. ترجمه کوونه. مترجم. ترجمان.

**ژباړونکے**:-(ــــ + ا + ړَ +و+ ن + کَے) [ژ + با + ړو + ن + کے](اس.مذ.ج: ژباړونکي. مؤ. ژباړونکې) ژبه بدلوونکے. مترجم. ترجمه کوونکے.

**ژباړونه**:-(ــــ+ا + ړَ + و + نَ) (ژ + با + ړَ + ؤ + نهَ)(اس . مو . ج . نې) د ژبې بدلونه. د يوې ژبې نه بلې ژبې ته راوړنه . ترجمه.

**ژباړه**:-(ژ+ب+ا+ړَه) يا(ژ+بَا+ړ)[اس.مو.ج: ژباړې]د ژبې بدلونه ـ د يوې ژبې نه بلې ژبې ته راوړنه. ترجمه.

**ژباړه**:-(ژ+ب+ا+ړَه) [ژ+بَا+ رَ]اس.مو.ج: ژباړې) [د ژبې بدلونه. د يوې ژبې نه بلې ژبې ته راړونه. ترجمه]

**ژباوڼ**:- (ژ+ بَا +و+ ن + ړ) يا (ژ + با + وو + ن + ړ)[ر.ق.اس.مذ.مؤ: ژباوڼه. ج: ژباوڼې](۱)و ــــ ژباړون. (ترجمان)

**ژبړ**:-(ژ+بَ+ړ) [صف. مذ.مؤ. ژبړه، ج: + ژبړے شبړ. شاړ سپاړ. ببر سړے]

**ژبغراند**:- (ژ+ب+غ + ړا + ن + د) ژبغړاندے:- (غ +ړا+ن+د) [صف. مذ] (لکه د ماشوم) په خبرو نوې نوې ژبه چلېدل ـ په اول څل په خبرو شورو کول. (متل) ژبې ژب غړاندے اخر به وچه شي د تول صورت نه وړاندې!

**ژبغراند(ې)**:– (۱)لکه د ماشوم رو روخبرې ازده کول.

**ــــ کېدل**:- په خبرو اول اول ژبه چلېدل. وروستې څل په خبرو شورو کول. لکه زما ووکے بچے اوس لږ ژبغړاند يا ژبغړاندے شوے دے.

**ژبګی**:-(ژ+ بَ+کَ+ ی)اس. مؤ(۱)د ژبې تصغير. وړه ژبه (دغوښې)(۲)د ژبې تصغير. وئيلے کېدونکے وړه ژبه.(۳)د يوې لوئې ژبې يوه وړه څانګه ـ لهجه.

**ژبن**:-(ژ+ب+ن) [پ. صف. مذ. موه. ژبنه ]ج. ژبني. (۱)ژبې والا.(۲)په ژبه يعني په لوظ قول ټينګ پاتے کېدونکے.

**ژبني**:- (ژ + بَ + ني) [اس.مذ.مو. ژبنې. ] ژبې سره تعلق لرونکے. هغۀ امور چې ژبې سره تړون لري. لکه ژبنی. مسئلې. ژبنی. څېړنې .

**ژبور**:- (ژ+ ب+ ؤ+ ر) [و ــــ ژبه ور ]

**ژبون**:-(ژ + بو + ن) [اس.مذ] د ژبې يو بدل شکل چې د فارسي. د زبان/ زبون په قياس جوړ شوے دے. عموماً د ژبون وهلے په مرکب کښې د استعمال لاندې راځي ـ يعني چې ژبه ئې وهلې شوې يا بنده شوې وي. زبون. جبون.

**ژبونکے**:- (ژ + بو + ن + کَے) [پ. ق. اسس. مذ. ج: ــــ کی ](۱)کالر. ټای. (۲)زردوزټوکرے چې ښځې ئې د سينې د پاسه ګنډي.(۳)د پر توګ خښتک.

**ژبون وهلے**:- (ژ+ بو + ن + وَ + ه + لَے) [صف. مذ. مؤ]هغه سړے چې ژبه ئې وهلې شوې وي يعني د ويرې يا د بل څۀ له کبله له خبرو پاتے شوے وي ـ ژب بسته.

**ژبه**:- (ژ + بَه) [اس. مؤ.ج: ژبې](۱)د غوښې هغه عضو چې په خولۀ کښې وي چې د څکلو يا د غړې د اړولو راړولو کار ترې اخستے شي. زبه. ځبه. جبه. زبان جبه(۲)د خولې نه وتونکي مرتب لفظونه چې د مختلفو اوازونو (غږونو) نه جوړېږي چې بني ادم پرې خپل خيالات نوروته ورڅرګندوي او د نورو د خولې وتي له د غه شان لفظونونه مطلب اخلي. ژبه، جبه. ځبه. زبان. اسما. لوظ. قول. عهد.

**ــــ ازغي ازغي کېدل**:- ډېر سخت ترے کېدل. ژبه وچېدل.

**ــــ اړول**:-(۱) ژبه بدلول. ترجمه کول.(۲) خبره بدلول. د خپلې خبرې نه ګرځېدل. (۳)دروغ وئېل.

**ــــ اړ کېدل**:- ژبه نښتل. د ويرې يا د رعب په وجه خبره د خولې نه نه وتل.

ما وې نن د زمانې ژبور زۀ يم
يــوه کس وتــه زما ژبه اړېږي خوشحال

**ــــ اوچېدل يا وچېدل**:- د ډېرې تندې په وجه په خولۀ کښې لاړې نۀ پاتې کېدل. ډېر سخت ترے کېدل. (۲)د اوږدې منډې په وجه په خولۀ کښې لاړې اوچېدل.

**ژبه اوچيدل ياوچيدل**:-(۱) د ډېرې ګرمۍ يا تندې په وجه خولۀ کښې لاړې وچيدل. سخت ترے کېدل(۲)د ويرې په وجه د خبرونه پاتې کېدل.

**ــــ اوړيدل**:-(۱) ژبه چلېدل. د ځنې لفظونو، غږونو (تورو) په وئېلو ژبه روانېدل. (۲) دځنې خبرو يا جملو په وئېلو عادي کېدل.

**ــــ بدلول**:- (و ــــ ژبه اړول)

**ــــ بندول**:- ګونګيان کېدل. د خبرونه پاتې کول. مجازاً لاجوابه کول.

لاد پــې لــه دواړو شونډو نه څڅېږي
په جواب دې ژبې بند کړې د هوښيارو خوشحال

**ــــ بندکوه**:- غلے شه! چپ شه! خبرې بند کړه.

**ــــ بنديدل**:-(۱)ژبه د خبرو نه پاتې کېدل. ګونګے کېدل. (۲) په ژبه باندې بنديز لګېدل. زبان بندي کېدل.

**ــــ پخېدل**:- د رښتيا د اظهار په موقع غلے پاتې کېدل. يا د ژبې نۀ چلېدل.

**ــــ پرے کول**:- د سزا په طور د چا مجرم نه ژبه پرې کول. پخوانو وختونو کښې دا هم يوه سزا وه.

**ــــ پريکړے**:- (و ــــ غوځ ژبے)

**ــــ په تالولګېدل**:- چپ کېدل. د ډېرو خبرونه پس غلے کېدل.

**ــــ په خولۀ کښې اخېستل**:-دمباشرت په وخت د مخالف جنس (سړي يا ښځه)ژبه په خپله خولۀ کښې اخېستل. په مباشرت کښې د تلذ زيوعمل دے.

**ــــ په خولۀ کښې اوچېدل**:-(۱) د ويرې نه د خبرو کولو طاقت سلب کېدل.

(۲)د حق وینا په وخت غلی او چپ پاتې کېدل. (طنزاً وایه شي)

**ـــــ په خولهٔ کښې ورکول:-** د مباشرت د وخت د تلذز یو عمل دے چې ښځه خاوند یو بل له ژبه په خولهٔ کښې ورکوي.

**ـــــ په واک یا قابو کښې ساتل:-** معني واضح کول. د ژبې نه داسې خبرې یا کلمات نه ایستل چې په بل چا بد اولګي یا ترې څهٔ نقصان پېدا شي. په احتیاط سره خبرې کول.

**ـــــ په ژبه په واک کښې کول:-** ژبه په قابو کښې کول. احتیاط کول چې د خولې نه ئې څهٔ خرابه، غلطه یا ناخوشګواره خبره نه وځي.

**ـــــ تر غاښ لاندې کول:-** خاموشي اختیار کول.

نصیحت بې ځایه واړه ځیګر خون دے
څـکه ژبـه تـر غاښ لاندې کړه ادیب    خوشحال

**ـــــ تړ تړی کېدل:-** ژبه نښتل.

**ـــــ تړل:-** (۱)په ژبه پابندی لګول. ژب بندي کول.(۲) خولهٔ تړل. چپ کیدل. خبره نهٔ کول.

**ـــــ تناکې کېدل:-** د سختې ګرمۍ په وجه ژبه داسې وچېدل چې ګنې تناکې شوېده. ډېر سخت تږے کېدل.

**ـــــ چاسره یو کول:-** په څهٔ خبره چاسره اتفاق کول. متفق کېدل.

**ـــــ چلول:-** ډېرې خبرې کول. د خبرو نه کار اخېستل. د څهٔ کار دایستلو د پاره ډېرې خبرې کول. تېزې تېزې خبرې کول.

چـله وے ژبـه پـه بېهوده خـبرو
جغ راکاږي له شېطان سره قلبه ئې    حافظ

**ـــــ چلېدل:-** (۱)ژبه ګرځېدل.(۲) ډېرې خبرې کول.

نه به بیا حافظه ستا ژبه چلېږي
نه به بیا ورته نژدې د مینې یار شي

**ـــــ خاربښتېدل:-** جنګ او کنځل ماری ته زړهٔ کېدل.

**ـــــ خاورې کېدل:-** (۱)مجازاً د ژبې خاوند مړکېدل. (۲)ژبه بې کاره کېدل.

**ـــــ خرابیدل:-** (۱)ژبه په خرابو خبرو لکه کنځلو منځلو عادتېدل.د ژبې په فصاحت کښې خرابي راتلل.

**ـــــ خوځول:-** ژبې له حرکت ورکول. ژبه خوځول. مجازاً د ژبې (یا خولې) نه څهٔ خبره راویستل. خبرې کول.

**ـــــ د خاورې شه:-**د ښیرې جمله ده. د تنبیه په طور هغه کس ته وئیلے شي څوک چې څهٔ خرابه غلطه یاد نقصان خبره اوکړي.

**ـــــ د شمعې:-** د شمعې ګل.

**ـــــ دقابو کړه:-** و ـــــ خولهٔ سمه خوځوه.

**ـــــ د قلم:-** قلم له د قط ورکولو نه پس چې قط شوے ځاے په مېنځ او څیرلے شي. په دې کښې هرې برخې ته د قلم ژبه وائي.

**ـــــ ده:-** (۱) (د سوال په طور) (محاوره) ایاداستا وعده ده؟ دادې لوظ دے؟ (ضرور به ئې پوره کوې؟) (۲) (جواباً) هو! دازما وعده ده. دا زما لوظ دے. (ضرور به ئې پوره کوم)

**ـــــ راوتل:-** (۱) ژبه د خولې نه باهر راوتل چې د ډېرې سختې تندې علامه ده. ډېر سخت تږے کېدل. (۲) د پانسۍ په وجه ژبه د خولې نه باهر ته راوتل.

**ـــــ زده کول:-** د کومې ژبې د وئېلو یا لیکلو چل زده کول.

**ـــــ ساتل:-** د ژبې نه د وتې خبرې پاس لرل. په قول لوظ ټینګ پاتے کېدل.

**ـــــ سمه خوځوه:-**د تنبیه د پاره هغې کس ته وئیلے شي څوک چې د خولې نه ورانې یا خرابې خبرې او باسي. د خولې نه ورانې یا خرابې خبرې مه اوباسه.

**ـــــ سولېدل:-**ډېرو خبرو یا په ډېر زیات پوهولو اونصیحت په موقع وئیلے شي. په ډېر زیات نصیحت پوهنه یا په خبرو کولو ژبه ستړے کول.

**ـــــ شغېدل:-** ژبه په خولې شغه کېدل. ژبه لړګے کېدل. د خبرو اترو نه پاتے کېدل (عموماً د څهٔ مرض له کبله)

**ـــــ ښودل:-**د حکیم د ملاحظې دپاره ژبه د خولې نه بهر راوښکل. ژب کښل

**ـــــ ښورول:-** ژبه خوځول. خبره د خولې نه اېستل. خبرې کول.

**ـــــ غر غر چلېدل:-**خبرې په تېزۍ سره کول. متواتر خبرې کول.

**ـــــ دَ غوښې ده:-** یعني نرم اولچکدار څیز دے چې کوم خواته ئې اړوې، اړولے شي. مطلب دا چې یو وخت یو رنګ خبره او کړي بیائې په بل رنګ بدله کړي. په خپله یوه وینا کلک نه پاتې کېږي. (طنزاً وئېلے شي)

**ـــــ قابو کول:-** په خبرو کښې احتیاط کول.

**ـــــ قلم کول:-** (و ـــــ ژبه پرې کول)

**ـــــ کتل:-** د حکیم یا طبیب د مریض ژبه کتل چې د مریض مرض یا حال معلوم کړي.

**ـــــ کښل:-**(۱) ژبه راوښکل. ژبه بهر ته راواباسل (لکه حکیم ته د ښودلو دپاره) (۲)زبان درازي کول. په زور زور خبرې کول.عموماً د ښځو په حقله وئېلے شي. لکه فلانۍ ژبه کښلې وه. (په زور زور لګیدلې وه)

**ـــــ کول:-**(۱) لوظ کول. قول ورکول (۲) د ماشوم په اول ځل خبرې کول.لکه دې ماشوم ژبه کړې ده. (۳)زبان درازي کول.

**ـــــ کول (چاسره):-** اقرار کول. لوظ کول. وعده کول.

**ـــــ ګرځېدل:-**د خاموشۍ یاد ګونګے کېدونه پس خبرې شورو کول (ژبه ئې ایله ایله ګرځېدلې ده)

**ـــــ ګونګېدل یا ګونګ کېدل:-**ژبه ګونګۍ کېدل. ګونګې کېدل یعني چپیا اختیارول. خبره دخولې نه نهٔ ایستل.چپ پاتې کېدل.

**ـــــ دې اوچه شي:-**یو قسم سخت قسم دے چې د څهٔ خبرې کولو نه انکار په موقع وئېلے شي یعني که ما دغه خبره کړې وي (یا ئې وکړم) نوزما ژبه دې په خولهٔ کښې اوچه شي او ببخې د خبرونه پاتې شي.

**ـــــ ناست:-** ژبې شوے. د ماشوما نو یو مرض چې په کښې د هغوي ژبې تالونه ورښکته شي او زړې پوهانې ښځې ئې راپورته کوي.

**ـــــ نښتل:-** ژبه تړ تړی کېدل. په خبرو کښې نښتل.

**ـــــ نه اوړېدل:-**د قوم لفظ په ادا کولو ژبه نهٔ ګرځېدل. د قوم لفظ په وینا کښې تکلیف ورپېښېدل.

**ـــــ (نه) چلېدل:-** د خبرو کولو نه پاتې راتلل.

**ـــــ نه خوځول:-** ژبې له حرکت نه ورکول.مجازاً غلے او چپ پاتې کېدل. هېڅ نه وئېل.

**ـــــ نیسل/ نیول:-** خاموشه کېدل. چپ کېدل. غلے کېدل. د خبرو کولو نه ځان ژغورل.

**ـــــ نیول:-** (۱) چپ پاتې کېدل. خاموشي اختیارول. (۲) په خبرو کولو کولو کښې ناڅاپه غلے کېدل.

**ـــــ نیول (دچا):-**(۱) ژب بندي کول. د خبرونه منع کول. (۲)د چا د ژبې (خولې) نه دوتې خبرې نه مطلب اخېستل.

**ـــــ وچېدل:-** (۱) په خولهٔ کښې لاړې نه پاتے کېدل. د ډېرې ویرې چپ پاتې کېدل.(۲) سخت تږے کېدل.

**ـــــ ورانه خوځول:-** (۱) دژبې یا دخولې نه خبرې ایستل. (۲) فحش ګوی یا کنځل منځل کول. ـــــ ورتلل (یا نهٔ ورتلل) په کومه خاصه ژبه پوهېدل. په هغه ژبه کښې خبرې کول یا لیکل ئې زده وي.

**ـــــ ورکول:-** اقرار کول. وعده کول . لوظ کول.

**ـــــ ئې د چړې/ تورې په شان غوڅه کوي:-**ژبه ئې ډېره تېره ده ـ داسې خبرې

کوي . کومې چې په اورېدونکے داسې بدې لګي لکه د چړې توري ګذار۔ د ظنز او د پېغور خبرې کول.

**ـــــ ئې ډېره خرابه ده**:-(طنزاً وايه شي) چې په ژبه خرابې خبرې کوي ـ ويرې سختې يا ناخوشګوارې خبرې کوي. (۲) ستغ ګويه ـ غيبت کونکے دے.(۳) کنځل مار او فحش ګويا.

**پردۍ ـــــ**:- (پ + رَ + دَ + ئ ـــــ )د مورنۍ ژبې نه علاوه نورې ټولې ژبې پورې بلا شي .

**پسته ـــــ**:- (پ+س+ت+ه ـــــ ) هغه ژبه چې په کښې پاسته او نرم الفاظ استعمالېږي چې په اورېدونکي بدنۀ لګي. او ښۀ اثر پرې اچوي .

**په بله ـــــ**:- (پَه + ب + لَه ـــــ ) (۱) پرې ژبه کښې. بدله ژبه کښ(۲) په نورو الفاظو کښې.

**په ـــــ اف نه وئېل**:- په څۀ تکليف يا دوک رسېدو سره اف قدرې نه وئېل. شکايت نه کول.

**په ـــــ اقرار کول**:- (۱) په ظاهره اقرار کول يا لوظ کول. (۲) ژبه کول. لوظ کول.

**په ـــــ څټل**:-د خوشامندو نه ډکې خبرې کول. خوشامنده برامنده کول.

**په ـــــ څۀ نۀ وئېل**:-د ژبې يا د خولې نه څۀ خبره داسې نۀ کول چې د زړۀ جذبات ئې راڅر ګند شي. په خولۀ چپ پاتې کېدل. د خپلو جذباتو اظهار په ژبه نۀ کول .

**په ـــــ څۀ نه وئېل**:- په ژبه يا په خولۀ هېڅ (شکايت وغېره) نۀ کول. (د ويرې يا د شرمه) په زړۀ کښې څۀ خيالات يا جذبات لرل .

**په ـــــ د ننګې و خيژه**:- يا په ـــــ دې توره دانه وخيژه۔ د ښېرې جمله ده. چې څوک غلطه يا خرابه خبره اوکړي نو د غصې د ښکاره کولو يا د تنبيه دپاره وئېلے شي.

**په ـــــ راتلل**:- يوه خبره چې په زړۀ يا ذهن کښې وي هغه په وئېلو کښې راتلل (عموماً په نفي کښې استعمالېږي)

**په ـــــ راوړل**:- په ژبه ادا کول. وئېل .

**په ـــــ روان / جاري کېدل**:- (۱) يوه خبره بيا بيا کول . يو نوم يا خبره (بې اختياره) بيا بيا وئېل.(۲)د يوې خبرې بيا بيا کولو عادت جوړېدل .تکيه کلام جوړېدل .

**په ـــــ سر ور کول**:- په هر حال کښې د خپل لوظ يا عهد پوره کول ـ تر دې که سرئې ځي.

**په ـــــ کښې ئې اورد ے**:- په ژبه کښې ئې ډېر زيات اثر د ے. په تقرير کښې ئې ډېر اثر د ے. لکه چې په زړونو کښې اوربل کړي.

**په ـــــ کښېښنودل**:- (۱) څکل. (۲) څکه کول. خوراک د ببخي نۀ کولو په موقع وئېلے شي. لکه حرام شه که مې په ژبه هم ايښې وي .

**په ـــــ مهر (لګېدل يا لګول)**:-په خولۀ مهر لګېدل يا لګول. د مجبورۍ نه چپ پاتې کېدل.په ـــــ نوم راتلل(دچا) په زړۀ کښې د يادېدلو په وجه د چا نوم (بې ساخته) په ژبه راتلل.

**په ـــــ نوم نۀ اخېستل**:- د زړۀ بدې کېدل چې نوم قدرې ئې هم په خولۀ نۀ اخېستل .د ډېرې کرکې او نفرت د اظهار په وخت وئېلے شي.

**په ـــــ وړل**:- په ژبه وئېل . په ژبه راوستل. ويل.

چې په کوئې کعبې د مقيم شم دروغژن يم
کـــه بـــه نوم پـــه ژبـــه چـــېـــرې وارم وړم خوشحال

**په ـــــ بدله ژبه اباسل / ايستل/ يستل** دخلې ايستل، وئېل.

چـــې تر ژبـــه څـــۀ اوباسي
نصيحت وي ، وعظ ، پند خوشحال

**تش په ـــــ**:-زباني.دخولې خبرې . چې عمل ورسره نۀ وي. زباني جمع خرڅ.

**تېره ژبه**:- هغۀ ژبه چې غوڅه کښې تېره وي. مجازاً وئېلے شي. يعني د هرې خبرې جواب کوي او د بل د جذباتو لحاظ پاس نۀ کوي .

**تېرۀ ژبے**:- هغه کس چې ژبه ئې په خبرو کولو کښې ډېره تېره يا چالاکه وي. هر چاله جواب ورکوي. يا د طنز پېغور خبرې کوي.

**تېزه ژبے**:- و ـــــ تېره ژبے

**حکومتي ژبه**:- (ح+ کو+مَ+ تي ) هغه ژبه چې د حکومت په د فترونو خط و کتابت کښې پکارولے شي.

**حلقي ـــــ**:- (حَ + ل + تي ـــــ) هغۀ ژبه چې زيا تره اوازونه ئې د حلق (مرۍ د سر) نه راوستے شي. يا حلقي غږونه زيات لري.

**خارجي ـــــ**:-(خا+ر+جي+ ـــــ)هغۀ ژبه چې د کوم بهرني ملک اوسيدونکي ئې وائي.

**خوږه ـــــ** :- هغه کس چې په خبرواترو (يا په ليک) کښې ډېره خوږه ژبه استعمالوي. يعني داسې الفاظ او جملې استعمالوي چې په اورېدونکي (يالوستونکي) ډېرې ښې خوږې لګي.

**دَ حال ـــــ**:- (ويل)د بې سهاره څيزونو په حقله وئېلے شي چې ددې څيز د ظاهري حالت نه دا نتيجه راووځي.

**د خبرو اترو ـــــ** :- (دَ + خَ + بر+وا+ ترو) هغه ژبه چې عام اولس په کښې خبرې اترې کوي. ساده باده او هېڅ قسم تصنع په کښې نۀ وي. په مقابله کښې د ادبي ژبې چې په کښې د محاورو او تصنع نه کار اخستے شي.

**دژبې په څوکه**:-(و ـــــ د ژبې په سر)

**د ـــــ په زور**:- د کا راو مشقت په ځا ے تش د خولې په ډزو ډوزو د چانه کار ابستل. په تشو خوشامندو برامندو (دبل مال خوړل).

**د ـــــ په سر**:- (۱) هغه خبره چې د زړۀ خولې نه د ژَبې سر ته رارسېدلې وي او ادا کېدوته تياره وي. (۲) محض په ژبه چې د زړۀ ترون وروسره وي.

**دَ ـــــ د لاندې ئې ژبه ده**:- د ژبې ئې دوه سره دي. يوه ژبه ئې يو شان وائي او بله ژبه ئې په بل رنګ کښې بدل کړي.

**د ـــــ رواني**:-په خبرو کښې د ژبې رواني پاتے کېدل او چېرته په مينځ کښې نۀ انښتل. عموماً په شعر و ادب کښې داسې شعرونو يا نثر په حقله وئېلے شي چې د الفاظ انتخاب داسې وي چې په وئېلو يا لوستلو کښې په کښې ژبه هواره روانه وي اوچېرته نۀ انښلي.

**د ـــــ زده کړه**: -د کومې ژبې زده کونه.د کومې ژبې د وئېلو يا ليکلو تعليم.

**د ـــــ ښودنه**:-د کومې ژبې د وئېلو يا ليکلو د چل تعليم ورکوونه.

**د ـــــ کارد لاسو نونه اخېستل**:- (۱) په خولۀ د خبرو په ځا ے په لاسونو اشارې کول. په خولۀ لړې خبرې کول خود تصريح د پاره لاسونه ډېر خوځول. (۲)د ژبې سوال جواب په ځا ے جنګ جګړې ته تيارېدل.

**د ـــــ لاندې وئېل**:-ډېره ورو خبره کول. چې اوريدنکے سړے پوه نه شي.

**د ـــــ نه اوړېدل**:-د خپلې وعدې يا لوظ قول نه اوړېدل. د خپلې کړې وعدې نه منکرېدل۔وعده خلافي کول.

**د ـــــ نه منکر بدل**:- دخپلې خبرې (لوظ . قول) نه انکار کول.

**ـــــ قلم کول**:- (و ـــــ ژبه پرې کول)

**د ژبې ويښتان کول**:- (پ. ق) کنايه ده. ډېرې زياتې خبرې کول. ډېر زيات نصيحت کول۔ په وئېلو يا نصيحت ځان ستړے کول. لکه د ۀ ته خومې په نصيحت ژبه ويښتان کړه۔

**دژبې ئې دوه لړه دي**:- دوه قسمه خبرې کوي۔ يوه خبره اوکړي بيائې بدله کړي.

**دفتري ژبه**:- (دَ+ف+تر+ي ) هغه ژبه چې د فتري معاملات او خط کتابت

وغېره په کښې کولے شي. حکومتي ژبه.

**د قېنچۍ په شان** ـــــ:- چې ډېرې زياتې خبرې کوي. هر وخت غږېږي يا هر چاله جواب ورکوي.

**دَ هر چاپه**ـــــ :-ډېر مشهور. چې هر يو کس ئې بل ته وائي. هر طرف ته خوره شوې (خبره وغېره)

**رسمي** ـــــ:- (رَ +س+ مي ) په ليک کښې راوستې شوې ژبه خاص کر هغه ژبه چې په کښې د خاصو الفاظو او اصطلاحاتو نه کار اخستې کېږي.

**ساده**ـــــ :- چې ګران ګران ټکي او محاورې په کښې نه وي استعمال شوې. د عامو خبرو اترو ژبه.

**سخته**ـــــ :-(۱)هغه ژبه چې د الفاظو تلفظ ئې اهل زبان د پاره ګران وي. (۲)د زجر او تنبيه د پاره ستغې سپورې خبرې. (۳)هغه ژبه چې په کښې ګران ګران الفاظ استعمال شوې وي.

**غوڅ**ـــ:- هغه سړے چې ژبه ئې غوڅه کړې شوې وي. يعني په خولهٔ کښې ئې ژبه نۀ وه. خاموشه. چپ پاتے کېدونکے.

**غوړ**ـــــ:- هغه سړے چې ژبه ئې غوړه وي يعني چې د خوشامندو برامندو خبرې کوي يا په تشو خوندناکو خبرو بل تير باسي.

**غوړه**ـــــ :- د خو شامندو ژبه. چې ډېرې غوړې غوړې خبرې کوي.

**کورنۍ** ـــــ:- (کو + رَ+ نَ+ ئ + ـــــ ) (۱)د کور ژبه. په کور کښې وئېلے کېدونکے ژبه. مورنۍ ژبه.(۲)د کلي اولس ژبه پوره په خواؤشا کښې ياد کېږي. (مورنۍ وي که بله کومه ژبه.

**ګرانه**ـــــ:- هغه ژبه (زباني) يا ليک چې په کښې ګران ګران ټکي يا محاورې وغېره استعمال شوې وي. (د ساده ژبې په مقابله کښې)ګرانه ژبه ئې ده. ډېره اوږ دوه ژبه ئې ده. ډېرې خبرې کوي. خبرلو څه دے. طنزاً وائيلے شي. يعني په خبرو يا جواب ورکولو کښې ډېر لحاظ دار دے.

**ګوهر باره**ـــــ:- شاعرانه ترکيب دے. هغه ژبه چې د مرغلرو په شان قيمتي خبرې د خولې نه وباسي. ډېرې ښې او د کار يا فصاحت او بلاغت نه ډکې خبرې کوونکې ژبه.

**لواړه**ـــــ **کول**:- (۱) د ژبې (خولې) نه سختې او ناګوارې خبرې ابستل. ستغې خبرې کول. (۲) بدرد وئېل.

**لونده**ـــــ:- (۱) د خوشامندو نه ډکه ژبه.(۲) خوږه او نرمه ژبه.(۳) زر زر بدليدونکې ژبه.

**لويه**ـــــ:-(لو+يَه) (۱) لويه (غوښتنه ژبه) مجازاً ډېرې خبرې کوونکے. (۲) هغه ژبه چې د الفاظو پنګه ئې نسبتاً زياته وي.

ـــــ **له ژبې ابستل/يسلت/اباسل**:- (۱) په ژبه يا په خولهٔ وئېل. د خولې ايستل يا وئېل. (۲) له ژبې لرے کول. خاموشه کېدل.

کافــر يــم کــه اوباســم هـغـه ساعت له ژبې
ستا نوم پــه زنکدن کړم ، که دا عيب دے هم خوشحال

**له ژبې راوتل**:- د ژبې نه ادا کېدل. په وينا کښې راتلل. له خولې راوتل.

**ملي ژبه**:- (م +لي) د ملت يعني د قام ژبه. قومي ژبه چې د مورنۍ ژبې نه علاوه وي.

**مورنۍ** ـــــ:- (مو + رَ + نَ + ئ ـــــ )هغه ژبه چې يو ماشوم ئې د مور په غېږ کښې د خپلې مورنه زده کوي. اصل او فطري ژبه.

**وړه وړه**ـــــ:- (وَ + ړَ +ه+ وَ + ړَ+ه ـــــ) د ماشوم ژبه چې يو يو لفظ په خپل انداز او تلفظ کښې وائي.

**هلکۍ**ـــــ:- (هَ + ل + ک + ئ ـــــ) وړه ژبه. هغه ژبه چې دَ الفاظو شمارئې د نورو ژبو په نسبت سره کم وي.

ـــــ **ور**:- (+ و + ر)(صف. مذ .مؤ. ـــ وره. ج: ورې) (۱)لفظي د ژبې څښتن. چې ژبه لري. مجازاً هغه سړے چې د خبرو مرنے وي. ډېرې متواتر خبرې کولے شي چې ژبه ئې ډېره چلېږي. (۲) هغه سړے چې په بحث او د بل سړي په قائله کولو کښې مرنے وي. فصيح زمانه. خولهٔ ور. د لوئې ژبې خاوند.

ما وې نن د زمانې ژبه ور زۀ يم
يــو کــس وتــه زما ژبــه اړېــږي خوشحال

ـــــ**ور تيا**:- (ـــــ + ت + يا) ـــــ تو ب (ـــــ + تو + ب) ژبه ورې. د ژبه ورې صفت نصيحت.

ـــــ **ورکے**:- (ژ+ب+و +ر+ کے) (پ. ق.صف.مذ .ج.کی ) هغه سړے چې ژبه ئې فصيحه وي. د سپېڅلې ژبې خاوند.

ـــــ **وري**:-(ـــــ + وَ + ري) [اس. مؤ] ژبه ورتوب. د ژبه ورتوب صفت د ژبې چليدنه. فصاحت.

**ژبې**:-(ژ+بَ+ ئ)(اس. مو) په تالو کښې ژبې په شان وړه شان غوښنه رازوړنده وي چې په خبرو اترو کولو کښې ډېره پکارېږي. ددې اصل کار د پوزې لار بندول او پرانستل دي. هر کله چې په خبرو اترو کښې د پوزې لار ازاده وي نو اوازد پاسه د لارې نه هم راووځي او پوزئيز اوازترې جوړېږي لکه د "نون" او "ميم" اواز يا هغه الفاظ چې د "نون" يا د "ميم" غږونه لري.(۲) د ماشومانو د يو مرض نوم دے چې د ماشوم ژبۍ په کښې بې ځايه شي. د ويرې يا مرو نه د بېلېدو په وجه يا په بله کومه وجه.

ـــــ **پورته کول**:- د هغې ماشوم چې ژبۍ ئې شوې وي. ژبۍ خپل ځاے ته راوستل (د پخوا) په جاهلو پښتنو کښې يوه طريقه ده چې ماهورو زنانه و به په ډکي وغېره د ماشوم ژبۍ راپورته کوله)

ـــــ **لوئيدل**:- د ماشوم ژبۍ بې ځايه کېدل. د ويرې يا د مور د جدا کېدو په وجه د ماشوم ناجوړه کېدل.

**ژبې**:- (ژ+ب+ ی) (اس. مؤ) هغه درې ګټيزه وړه شان ټکره چې په جامه کښې وګنډلے شي عموماً په ترخونو کښې ګنډلے شي. تريز. ترخځهٔ. تخرګے.

**ژبينګے**:- (ژ+بی+ن+کے) [پ ق.اس.مذ .ج.کی]د پرتوګ خښتک.

**ژخار**:- (ژَ+ خا+ر) [ف/ ما](زخار. شور کونکے.

**ژدويل**:- (ژ+ دو+ ي+ ل) [پ ق. مص مت](و ـــــ ژوول)

**ژدوينه**:- (ژ +دو+ي+نَه) [پ ت . حمص] و ـــــ ژوونه.

**ژر**:- (ژ+ر) [و ـــــ زر] ـــــ (و ـــــ پزر)

**پ**ـــــ:- (ب+ژ+ ر) فوراً. په تادۍ. مخې سره. سمدستي ـــــ تر ژره (و ـــــ زر ترزره) ژرشه / (و ـــــ زرشه)

ـــــ **کول**.(و ـــــ زر کول)

ـــــ **کېدل**.(و ـــــ زر کيدل)

**ژرتيا**:- (ژ+ر+ تيا)[ف. صف] ژور. جور. تمن. ډونګے ـــــ نګاه.(ف تر) هغه سړے چې نظر ئې ډېر ژورې ته رسي. باريک بين. د خبرې تل ته رسېدونکے. ژور نظرے. ډونګے. نظر لرونکے.

**ژرګه**:- (ژَ+ ر + ګه) [اس.مو.ج: ژرګے] پلوڅه. ازغنه وونه.

**ژرلک**:- (ژَ + ر + ل + ک) [پ ق. اس.مذ ج. زدلکان] د يو ازغن بوټي نوم دے چې زميندران د غوبل. وخت تر بنه جاپه جوړه کړي او دغنمو ګيډۍ پرې مېده کوي کافر خار.

**ژرندګړے**:- (و ـــــ ژرنده ګړے)

**ژرنده**:- (ژ + رَ + ن + ده) [پ. اس. مؤ. ج: ژرندې] ژرنده. د اوړو مشين. (ميچن) چې په اوبو يا په باد چلېږي.

**د بجلۍ**ـــــ:- هغه ژرنده چې د اوبو په ځاے په بجلۍ چلېږي.

**ژرنده**ـــــ:- ورانيدل. ژرنده (جرنده) کښې څهٔ نقص يا خرابي پيدا کېدل. ( څهٔ ژرنده ورانه څهٔ دانې لوندې.

**باري**ـــــ:- هغهٔ ژرنده چې د هوا (د ببوزو) په زور چلېږي. په داسې ژرندو لوړے لوړے ځلور پرېزېبوزي لګولے شوي وي چې هواچلېږي نو دغه ځلور پرېز ببوزي هم چورلي او ښکته د ځان سره ژرنده هم ګرځوي.

**بخاري**ـــــ:- "فرزرند" چې د اوبو په ځاے د براس په زور چلېږي.

**په ـــــ اوړه کول**:- (۱) دانې غله وغېره د ژرندې په ذريعه اوړه (ميده) کول. (۲)(دچا) د امېد په طمع څهٔ کار کول.

**په ـــــ کښې ناست**:- (۱) هغهٔ کسان چې ژرنده کښې ناست وي. د يو بل خبره نهٔ اوري. ځکه په زوره زوره خبرې کوي. (۲) هغې کس ته طنزاً وئېلے شي۔ څوک چې بې وجې په زوره زوره خبرې کوي چې په ژرنده کښې خو نه ئې ناست. (يعني وروخبرې کوه)

**پر (په) ـــــ کښېنستل/ کښېناستل**:- خپل نقصان کول. ځان په تکليف کښې اچول.

**پر(په) ـــــ کښېنول**:- (۱) نقصان يا تکليف ورسول. (۲)د ژرندې انتظام ورسپارل.

**د ژرندې پل جوړول**:- شکست منل. خپل ماتې (په ذلت سره) تسليمول. داوښ چاپ جوړول.

**د ـــــ د دوهٔ پلو نو ترمېنځ**:- (۱) په دوه قسمه مصيبتونو يا افتونو کښې راګير. (۲) چې د هر طرف نه ورته نقصان يا تکليف ورسي.

**د ـــــ غاښ**:- (ـــــ + غا + خ/ ش) [پَ ق. اس جمع] د ژرندې غاښونه يا دندان

**د ـــــ منږک(مږک) مره**:- (۱) هغه سړے چې د خوراک ئې څهٔ کمے نه وي۔ (۲) هغه سړے چې په دوړو ئې ټول بدن ډک شوے وي. (مذاقاً يا طنزاً)

**ژرنده**:- (ژ+ ر+ن+د+ه) [پ.اس.مؤ.ج: ژرندې] جرنده. قفل. تاله.

ـــــ **بندول**:-(وـــــ ژرنده بندول)

ـــــ **پسې اچول**:- (و ـــــ ژرنده پسې پورې کول)

ـــــ **پرې لګول**:- څوک په کوټه وغېره کښې بندول او ورته ژرنده اچول.

ـــــ **شوې**:- هغه کوټه، ور ياخندق وغېره چې دبندولو نه پس ژرنده هم ورته اچولے شوې وي. مقفل شوې.

ـــــ **کړې**:- هغه ځاے صندوق وغېره چې ژرنده ورته اچولې شوې وي. مقفل کړے.

ـــــ **کول**:- څهٔ څيز په ژرنده. قفل. جندره سره بندول. قفل کول.

ـــــ **لرې کول**:- (و ـــــ ژرنده لرې کول)

ـــــ **ماتول**:- ژرنده (جرنده) په کنجئ سره دلرے کولو په ځاے په ماتولو سره لرے کول.

ـــــ **وهل**:- (وـــــ ژرنده وهل)

**کوردې ـــــ شه**:- (وـــــ کور دې جرنده شه)

ـــــ **ګړے**:- (ـــــ ګ + ړے)(اس. مذ. ج: ـــــ ګړي) (۱) د ژرندې خاوند د ژرندې منتظم (۲) (مذاقاً) هغه سړے چې ډېرې دوړې پرې پرېوتې وي.

ـــــ **ګړتوب**:-(ـــــ +ګ+ړ+ تو+ب) د ژرنده ګړي۔ کار کسب.

**ژرندے**:- (ژ + ر + ن + د ے) [پ ق. اس.مذ] د هلکانو يوه لوبه ده چې په کښې لوبه کوونکے داجمله استعمالوي۔ ژرندې مخ دې ښتئ۔ دا ټوله جمله هم ددې لوبې د نوم په حيثيت استعمالېږي.

**ژرنګ**:- (ژ +رَ + ن + ګ) [اس. مذ.ج: ژرنګونه] شرنګ. د ګونګرو اواز۔

په ليدو به ئې د ګور مړي سر هسک کا

کـــه پـــرې درومـــي د پائلو په ژرنګونه    خوشحال

**ژرنګانې**:-(ژ+ ر+ن+ ګا+ نې) [اس. مذ.ج: ـــــ نې] جرس. زنګ۔

**ژرنګول**:- (ژ+ ر+ن + ګ + و + ل) [پ. مص] د څهٔ څيز نه د ژرنګ ژرنګ اواز ايستل۔ شرنګول. شړنګول. د ژرنګ ژرنګ يا د شړنګ شړنګ اواز ايستل.

**ژرنګوله**:- (ژَ+ رَ + ن + ګو + لَه) [اس. مو. ج: زرنګولې] زنګوله. جرس.

**ژرنګهار**:- (ژ + رَ + ن+ ګ + ها + رَ) [اس. مذ] د ژرنګ ژرنګ اواز. شړنګهار. د ژرنګ شړنګ يا د شرنګ شرنګ اواز.

**ژرنګېدل**:- (ژ+ر+ن+ګې+د+ل) [پ. مص] د ژرنګ ژرنګ اواز کول. شرنګېدل د شرنګ شرنګ اواز کول.

د هغو دلبرو پښې شوې تورې خاورې

چې په پښو به ئې رنګېدل راته خلخال    خوشحال

**ژروالے**:- (ژ+ر+وا+لے) [اس. مذ] ژرتيا. زروالے۔ تادي. بيړه.

**ژره**:-(ژ+ر+هَ) [پ ق. اس. مؤ. ج ژرې] (۱) ازغے. خار. (۲) ژرګه. يوازغن بوټے.

**ژرې**:- (ژ + ر + ئ) [پ ق.اس.مو] داوښ سينې ته نزدې سخته څنګل.

**ژړ**:- (ژ+ ړ) (اس /صف. مذ. مو.ژړه.ج: ژړې) (۱)پېتل. لکه ژړپول.(۲) زېړ (رنګ) د ژړوګلو باغ (۳) زېړرنګے. زېړ شوے. لکه زېړ مازيګر۔

**ژړا**:- (ژ+ ړا) [پ ق. اس. مو. ج: ژړاګانې] هغه توررنګې ماده چې د توت د ونې د تنې نه راوځي.

**ژړا**:-ـــــ (ژ + ړا) [اس.مؤ.ج: ژړا ګانې]زړا. جړا. فرياد.

ـــــ **اخېستل**:- فرياد اورېدل. دادرسي کول.

ـــــ **انګوله**:- ژړا فرياد. فرياد اوشکايت۔ دَ ژړا نعرې سورې.

ـــــ **اورېدل**:- فرياد اورېدل. شکايت اورېدل۔

ـــــ **پېټېر**:- ژړا او ماتم. ژړا انګوله.ژړا ده۔ چېرته څوک مړ شوے دے چې د زنانه و د ژړا اواز راځي.

ـــــ **ژړل**:- د څهٔ شکايت بيان په ژبه کښې کول۔ د څهٔ پېښې ياد کوم سړي د عمل شکايت يا فرياد کول.

ـــــ **فرياد**:- فرياد او واويلا. فرياد او شکايت. نعرې سورې.

ـــــ **کول (چاته)**:- (۱) فرياد کول. شکايت کول. ژړل (۲) خپل دوک درد بيانول.

**ژاړې**:- په لوبه کښې چې ببلونکے په ناحقه اعتراض شروع کړي نوګټونکے ورته طنزاً وائي.

**په ژړا بودول**:- په منت اوزارۍ څهٔ څيز حاصلول.

**په ـــــ ځان خلاصول**:- په منت زارۍ او په ژړلو ځان د کومې سزا نه خلاصول. عموماً په نفي کښې استعمالېږي. لکه په ژړا رانه ځان نه شې خلاصولے.

**په ـــــ ځان مړ کول**:- (و ـــــ په ژړا ځان وژل)

**په ـــــ ځان وژل**:- ډېر زيات ژړل. متواتره وړا کول. ژړا نهٔ بس کول.

**په ـــــ سترګې سرې کول**:- په سرواو ښکو ژړلو په وجه سترګې سرې کول. ډېر زيات ژړل.

**په ـــــ سر کېدل**:- په ژړا شورو کېدل۔ په ژړا لګيا کېدل. ژړا شورو کول.

**د ـــــ نه تبر**:- د ډېر زيات غم يا د افسوس حالت. په ظاهره خو ژاړې نه خوحال ئې ژړېدونکي سړي نه بدتر وي۔ ډېر زيات غمژن يا چې په څهٔ خبره ئې زړهٔ ته ډېر دک درد رسېدلے وي.

**ژړان**:-(ژ + رَا + ن) [و ـــــ ژړاند]

**ژړاند**:- (ژ+ړا +ن+د)[صف. مذ. مؤ: ژړانده۔ ج: ژړاندې](۱) ژړا کوونکے. په ژړا (۲) فرياد کوونکے. فريادي.

**ژړانده**:- (ژَ + ړا + ن + دَ+ه) [صف. مو.ج: ژړاندې](۱)د ژړاند تانيث. (۲) ژړا سره متعلق۔ لکه د ژړاندې ورځې. (۳)د محرم مياشت.

**ژړاند**:- ژړانده مياشت.(ژ + يا + ن + دَ +ه+ م + يا +ش + ت)هغه مياشت چې په کښې ډېره ژړا کېږي۔ د محرم مياشت. د حسن رضی اللہ عنه او حسين

رضی الله عنه میاشت. د عاشورې میاشت.

**ژړاندي ورځې**:- (ژ+ړا+ن+د+ه+ و + ر + ځ+ې) هغه ورځې چې ډېره ژړا په کښې کولی شي. د محرم د میاشتې اولنۍ لس ورځې. دعاشورې ورځې.

**ژړانګ**:- (ژ + ړا + ن + ګ) [و___ ژړانګه]

**ژړانګه**:- (و + ړا+ن+ګ+ه) [اس. مو. ج: ژړانګې] ژړانګه. یوه زېړرنګې مرغۍ. ژړانه.

**ژړا نوک**:-(ژ+ړا+نو+ک) [اس. ص. مذ. مؤ: ژړا نوکه. ج: ژړانوکې] هغه ماشوم چې ډېره ژړا کوي. هغه ماشوم چې هر وخت ژاړي. ژړغو.

**ژړانه**:- (ژ + ړا + نَه) [اس. مؤ] (و___ ژړ انګه)

**ژړبخون**:-(ژَ +ړ+بَ+خو+ن) [صف.مذ.مؤ:ژړبخونه. ج: ___ بخونې] زېړبخن. کچه زېړرنګ. پیکه زېړ رنګ.

**ژړونګے**:-(ژَ+ړَ+رَ+ن+ګَے) [صف. مو] زېړ رنګ والا. هغه چې زېړ رنګ لري.

**ژړغلن**:- (ژَ + ړ + غ + ل + ن) [صف. مذ] زېړرنګے

سپینه خولۀ لولی لولی. ژړ غلن نۀ دے دیارۍ. (غاړه)

**ژړغو**:- (ژ+ړ+غو) [اس. مذ] (و___ ژړانوک.

**ژړغونے**:- (ژ+ړ+غو+نے) [اس. مذ.ج: ژړغوني مو: ژړغونې] ژړاته تیار. په ژړا کېدونکے.

پـه لـبـمـۀ د ژړغـونـي عـنـدلـیـب کـې
رنګ د سرو ګلو شوخي کوي خندان وي — حمزه شنواري

**ژړل**:- (ژ + ړ + ل) [اپ. مص] (۱) ژړا کول. جړل. زړل. ګریه کول. (۲) فریاد کول. شکایت کول. (۳) کنایه: د چا مړکېدل (هغه غنچو ژړلے دے) یعني په مړ یا په ورک ګڼلے دے. (۴) په لوبه کښې د بل په ګټه باندې بې ځایه اعتراض کول. د چاپه مرګ ویر کول.

یا به ستا په ورۀ ناري وي تۀ به ژاړې
یا د ســتا د لاســه ویـر د چا پـهـورونه — خوشحال
که جوړه څوک تلے و قبروته دربغه
ژاړم دا چـې یـا بــه تۀ نۀ ئې او یا زۀ — رحمٰن بابا

**په اوښکو___**:- د معمول په شان ژړل. عامه ژړا ژړل. که تۀ راسره په اوښکو وژاړې نوزۀ به درسره په وینو وژاړم (متل)

**په چغو سره___**:- په زوره زوره ژړل.

**په رټ رټ___**:- (و___ په ورټ ورټ ژړل.

**په سرو اوښکو___**:- (و___ په وینو ژړل)

**په ورټو___**:- (و___ په ورټ ورټ ژړل)

**په ورټ ورټ___**:-ډېر ډېر ژړل. په زوره زوره ژړا کول.

**خپل قسمت___**: د خپل قسمت نه شکایت کول.

**وینې___**: د اوښکو په ځاے وینې توېول. د زړۀ وینې سترګو له راتلل. د ډېر زیات درد، دک یا غم د اظهار د پاره وئېلې شي.

**ژړلے**:- (ژ+ړ+لے) [اس. صف] هغه کس یا څیز چې ژړا پرې شوې وي.

**ژړندوک**:- (ژ+و+ړ+ن+دو+ک) [و___ ژړندوکے]

**ژړندوکے**:- (ژَ+ړ+ن + دو+کے) [اپ. اس. فا] (۱) ژړا کونکے. ژړېدونکے. (۲) هغه سړے چې هر وخت په ژړا اخته وي. (۳) ژړا ته نزدې. ژړغونے.

**ژړنده**:- (ژ + ړ+ن + د+ه) [و___ ژړاند]

**ژړنګ**:- (ژ + ړ + ن + ګ) [اس. مذ] و___ ژړنګ.

بـــل اواز ئـې په زړۀ نــۀ لــګي تــرې کــونې شــه
چې پـــه غوږ ئې یو ځل ستا د خلخال ژړنګ دے — سعید خټک

**ژړو**:- (ژ+ړو) [صف] زېړ رنګے. مجازاً معشوقه. محبوبه، د سپوږمۍ تر راختو
په انتظار یم وژړو — سپوږمۍ تر راختو په انتظار یم د ژړو (غاړه)

**ژړوالے**:- (ژَ+ړ+وا+لے) [اس. فا. ج: ___ والي] زېړ والے. زردي. په رنګ کښې د زېړ رنګ اثر.

**ژړوژمه**:- (ژَ-ړو + ژَ + مَه) [اس. مذ.ج: مې] زېړ بخن تیا. په رنګ څۀ قدرې د زېړ رنګ اثر. څۀ قدرې زېړ.

**ژړول**:-(ژَ+ړَ+و+ل) [اپ. مص] (۱) بل سړے په ژړا کول. بل له ژړا ورستل. (۲) تکلیف یا نقصان (ور) رسوول. (۳) زېړ رنګ ورکول.

**ژړولے**:- (ژ+ړ+ و+ لے) [اس مف. ج___ ولي] په ژړا کړے شوے.

**ژړونګ**:- (ژَ + ړَ + و + ن + ګ) [حمص] ژړونه. په ژړا کوونه.

**ژړونه**:- (ژَ + ړ + و + نَه) [حمص] په ژړا کوونه.

**ژړوونکے**:- (ژ + ړ+ وو+ن+کے) [اس. فاع. مذ.ج: ژړونکي. مو: ژړونکې] په ژړا کونکے.

**ژړه غونے**:- (ژَ + ړَه + غو + نے) [اس. صف] ژړا ته نزدې. چې خولۀ ئې ژړا ته ورانه ورانه شي.

**ژړي**:- (ژ+ړ+ي) [اس. مو] (۱) سراب (ق) د پېر یانو اوبه. (۲) د باران پرله پسې وریدنه. هغه ورځې چې باران په کښې مسلسل وریږي (د ژمي ژړۍ یا جړۍ) (۳) د یو بوټي نوم چې د مار خوړلي دپاره پکارېږي. جړۍ. (۴) یو زېړ رنګې مرغۍ. ژېړانکے (۵) د ژېړیا د زېړ رنګ په معنې د تصغیر زېړۍ. (۶) جړۍ. د بوټو جړه چې په دارو کښې پکارېږي. (۷) قے. التې. کوز کاته. (۸) تبه کېدل. ناجوړه کېدل

.که به نه وائی لنډۍ د دوي د تبې سی ژړئ — (غاړه)

**ژړے**:- (ژ+ړے) [اس. مذ] (۱) زېړ رنګے (۲) د زېړ مرض. یرقان.

**ژړېدل**:- (ژ+ رې+د+ل) [اپ. مص] (۱) ژړا کول. ګریه کول. په ژړا کېدل. (۲) فریاد کول. شکایت کول.

**ژېړېدل**:-(ژ+ړې+د+ل) [اپ. مص] زېړېدل. رنګ زېړ کېدل. په رنګ کښې زېړوالے پیدا کول.

**ژړېدلے**:-(ژ+رې+د+لَے) [مف. مذ.ج: ژړیدلي. مؤ: ژړیدلې] په ژړا شوے.

**ژړیدنه**:-(ژ+رے+د+ نه) [حمص] ژړا کوونه.

**ژړېدونکے**:(ژ+رې+دو+ن+کے)[اپ.اس.فاع.مذ.ج:ژړیدونکي.مو:ژړیدونکې] (۱)ژړا کوونکے. په ژړا اخته. (۲)غم کوونکے. غمزده.

**___ سترګې**:- (___ + س + ت + ر + ګې) (۱)ژړا کوونکے سترګې. (۲)غم زپلي خلق. چې په غم کښې په ژړا اخته وي.

**ژېړېدونکے**:- (ژَ+رې+دو+ن+کے)[اپ.اس. فاع]زېړیدونکے. هغه کس یا څیز چې رنګ ئې په زېړ یدو وي.

**ژړیدۀ**:-(ژ+ړي+د+ه) [اپ. حمص]ژړا. ژړیدنه. د ژړا عمل.

**___** (ژ+ړي+د) [اپ. حمص] زېړ رنګ کېده. رنګ زېړېده.

**ژژګے**:- (ژَ + ژ + ګَے) [اس. مذ.ج: ژژګي] جیزګے. شیشګے. د شکوڼ په شان وړوکے ځناور. شیژګے.

**ژغ**:- (ژ + غ) [اس. مذ.ج: ژغونه] غږ. غګ. اواز.

**___ رویغ**:- کش کړپ. ترپر. شور زوږ.

**___ رویغ کول**:- کش کړپ کول. ترپر کول. شور زوږ کول.

**___ کول**:-اواز کول. ږغ کول. غږ کول. ناري کول.

**ژغ**:- (ژ+غ) [اس. مذ. ج: ژغونه] جغ. د یوې هغه برخه چې د کلبې د غوایانو په څټ کښې اچولے شي.

**___ راښکل**:- (۱) په جغ کښې سر ورکړے. په مخه بوتلل. مراد ترې یوې کول دي.(۲) امداد کول. مرسته کول. ملګرے کېدل. ملګرتیا کول.

**ژغا**:- (ژ+غا)[اس.مؤ] ږغا. اواز. د ژغ ژغ یا د چغ چغ اواز چغار (ډېنو)

**ژغال**:- (ژ+غَا+ل) [ف. اس. جمع] (۱) سکاره (۲) انګار. لګیدلي سکاره.

**ژغځی**:- (ژ + غ +ځ + ئ) [پ ق. اس. مو] د یوونې (روځ) پانې.

**ژغول**:- (ژ + غَ + ر + ل) [مص مت] و ___ ژغورل.

**ژغري**:- (ژ +غ+ري) [اس. مؤ] ژغورنه. ساتنه. بچ کوونه. حفاظت.

ببوفا سړے بتر تر کوته سپي دے
چې ژغرئ کا دروغ د لېونې        خوشحال

___ **کول**:- ژغورل. بچ کول. حفاظت کول.

بلـدنـهٔ گوري بل مخ ته
تل د سـترگو کړم ژغري        خوشحال

**ژغړے**:- (ژ+غ+ړے) [پ ق. اس. مذ] يو قسم بوټے چې د جوارو په فصل کښې پيدا کېږي.

**ژغل**:-(ژ+غ+ ل) [اس. مذ] شگه. بجري. واړه کاڼي.

**ژغنډ**:-(ژ+غَ +ن+ ډ) [اس. مذ.ج. ونه] (۱) په تبر وغيره سره د ونې په تنه کښې لوے غوځ (۲) لوے او ژور زخم. ژغونډ.

___ **جوړول**:-(۱) د ونې په تنه کښې په تبر وغيره سره لوے زخم جوړول. (۲) زخم ورکول. زخم جوړول (د چا په بدن کښې)

___ **ورکول**:- د ونې په تنه کښې تبر وغيره سره لوے زخم جوړول. (۲) زخم ورکول. لوے زخم جوړول.

**ژغنډکے**:- (ژ+غ +ن+ډ+کَے) [اس. مذ.ج:___ کي] (۱) د ټوپک نخښه (۲) د ژغنډ تصغير.

**ژغنډه**:-(ژ+غ+ن+ډه) [پ ق. اس. مؤ] ژوره جرې. د ژغنډ تانيث.

**ژغور**:-(ژ+غو+ر) [اس. مذ] (۱) ساتنه. پناه. حفاظت. (۲) نجات.

**ژغور ځاے**:- (ژ+غو+ ر+ زا/ جا + ے) [پ تر. مذ. جمع: ژغورځايونه]
د پناه يا د حفاظت ځاے. هغه ځاے چېرته چې د يو څيز ژغورنه او حفاظت کېږي.

**ژغورل**:-(ژ+غو+ر+ل) [پ. مص] محفوظ ساتل. بچ کول. بچ ساتل.

که صورت ژغورلے له غمه کاتهٔ مه کړه
زړهٔ د ما له په غم اخته وي چې کاتهٔ وي        خوشحال

**ژغورلے**:- (ژ+غو+ر+ لے) [اس. مف] (۱) حفاظت کړے شوے. محفوظ شوے چې نگهداشت ئې شوے وي. (۲) چې نجات ئې موندلے وي.

**ژغورنگ**:-(ژ+غو+ر+ن+گ) [حمص] (۱) ژغورنه. ساتنه. حفاظت کونه (۲) نجات ورکونه.

**ژغورنه**:-(ژ+غو+ر+ نَه) [حمص مو، ج: ___ نې] (۱) بچ ساتنه. محفوظ ساتنه يالونه. حفاظت. (۲) رهای.

**ژغورونکے**:-(ژ+غو+رو+ن+کے) [اس. نا. مذ. ج: ___ کي] (۱) بچ کونکے. محفوظ ساتونکے. محافظ (۲) رهای ورکونکے. ازادوونکے.

**ژغورے**:-(ژ+غو+رے) [پ ق .اس. فا. مذ. مو: ژغورې] ژغوروونکے. حمايت کوونکے. حامي نگهبان. محافظ.

**ژغونډے**:- (ژ+غو+ن+ ډے) [اس. مذ. ج: ژغونډي] يو د لرگي ميخ. د لرگي ميخ په شان چې په جغ کښې استعمالېږي. جغونډے. جوغلنډے.

**ژغهار**:-(ژ+غ+ها+ر) [اس. صوت] د ژغ ژغ اواز.

___ **کول**:- د ژغ ژغ اواز کول. ژغبدل. چغبدل.

**ژغے**:- (ژ+غے) [پ. ق.اس.مذ.ج: ژغي] سټريچر. چې په هسپتالونو ياد جنگ په ميدان کښې د زخميانو دوړلو د پاره کارولے شي.

**ژک**:-(ژ+ک) [سابقه] سابقه ده عموماً د ژوند د لفظ نه وړاندې د تاکيد دپاره راوستے شي. يعنې ژک ژوندے. بالکل ژوندے. ببخي ژوندے. ژک د جک په شکل کښې د جوړ نه اول راوستے شي. يعنې جک جوړ دے يعني بالکل جوړ دے.

**ژگه**:-(ژ+گهَ) [اس. مؤ. ج: ژگې] په نکاح شوې ښځه. منکوحه. مائنه. ماندينه.

زهٔ ئـې مـېړهٔ يم ، دنيا مې ژگه ده
زړهٔ مې په هر څهٔ وربانديې يخ دے        خوشحال

**ژلی**:- (ژَ + لَ + ئ) [اس. مؤ] و ___ ږلی.

**ژمرين**:-(ژ+م+ري+ن) [صف.مذ] دا ټکے د ژمي سره يو ځاے استعمالېږي. لکه ژد ژمرين دے سپړلے د لوړو شين دے.

**ژمگنی**:- (ژ+م + گن+ئ +ی) [اس. مو. مذ: ژمگني] هغه څيز وغيره چې د ژمي (سرما) موسم سره تعلق لري. د ژمي سره تړلے.

**ژمگورے**:-(ژ+م+گو+رے) [اس. مذ. ج. زمگوري] په ژمي کښې داوسيدو کور د ژمي استوگن ځاے.

**ژمن**:-(ژ+م+ن) [اس. مذ] ژمنه. قول. لوظ. وعده.

که د ښکليو وعده هر کله خلاف ده
خـدا ے دې تـا دروغـژن نـهٔ کانـدې پـه ژمنـه
د شـمال ښـيئنه کـا پـه جلـوب درومـې
د ښـکاري سـرې پـه ژمنـه بـاور نشـته
زيات و سم به د يو دم د ژوندون نهٔ وي
هغه دم چې د پوره شي د مرگ ژمنه        خوشحال

**ژمنه**:- (ژ+م+نه) [اس. مو. ج: ژمنې] (۱) ژبه. وعده. قول. (۲) نيته. وخت.

___ **کول**:- مص. وعده کول. ژبه کول. لوظ کول.

**ژمنے**:- (ژ+م+ ن+ے) [اس. مذ. ج: ژمني] هغه څيز چې ژمي سره تعلق لري.

**ژمگنے** :- . د ژمي موسم سره تړلے.

**ژمے**:- (ژَ + مے) [پ. اس. مذ.ج: ژمي] (۱) زامے. داوبو مشک گوټے. (۲) د څرمنې گوډے چې په کښې غوړي کيښودے شي.

**ژمے**:- (ژ + مَے) [اس. مذ.ج: ژمي] د سړدې موسم. د يخنۍ موسم. متل دے. سل روپۍ پور کړه د ژمي شپه په کور کړه.

**ژمے** :- د ژمي ورځ. د سړدې موسم ورځ. د يخنۍ موسم ورځ. دا چې د اوړې د ورځو په مقابله کښې ډېره لنډه وي. (متل دے) زه شومه ولاړه، د ژمي ورځ وه لاړه.

**ژميا**:- (ژ +م + يا) [پ. ق. مذ] يو ډېر تريخ او ستغ بوټے دے چې سپين گلونه کوي. د څارو خوراک دے. جميا.

**ژن**:-(ژ+ن) [اس. مو. ج: ژني، ژونې] جن. جل. جينۍ. انجلۍ.

**پيغله** ___:- هغهٔ ژن (جينۍ) چې ځوانۍ ته رسېدلے وي. ناوادهٔ کړې ځوانه جينۍ.

___ **ژن**:(ژ+ن) [لاحقه] لاحقه ده . د نورو الفاظو نه وروستو راځي او د صفت کله ترې جوړه کړي. لکه کبرژن (کبرجن) د روغژن. (دروغ جن)

**ژند**:-(ژ+ن+د) [ق.اس.مع] د زردشت يا زرتشت د مذهب کتاب، د اتش پرستو (پارسيانو) مقدس کتاب. ژند اوستا. ژند ته اوستا هم وائي.

**ژندره**:- (ژَ+ن+د+ ره) [اس. مو. ج: ژندرې] (۱) جرنده. قفل. قلف. تالہ (۲) جرنده. يوه اله چې کارتوس پرې سمولے شي. (۳) و ___ ژندرې.

___ **بندول**:- ژندره (جندره) په کنجۍ سره پورې کول.

___ **کول (ور)**:- ور (يا صندوق وغيره) ته جندره اچول. مقفل کول.

___ **لرې کول**:- ژندره (جندره. قفل) په کنجۍ سره پرانستل. ژندره خلاصول.

___ **ورانبدل**:- و ___ ژرنده ورانبدل ___ وهل ژندره (جندره) پورې کول.

**کوردې** ___ **شه**:- په کور دې جندره ولگه. کور ور دې پورې شه. يعني هېڅوک دې پاتې مه شه.

**ژندره**:- (ژ + ن + د + رَه) [اس. مو.ج: ژندرې] (۱) د دانو د اوړه کولو اله چې په اوبو چلېږي. جندره. جرنده (۲) خلق ميچن ته هم دلاس ژندره وائي.

____ **دلاس**:- د دانو وغېره د اوړۀ کولو اله چې په یو لاس ګرځولے شي. میچن.

**دژندره/ ژندرې پل جوړول**:- (و ____ د ژرندې پل جوړول)

**د ____ منړک (مږک، مږه)** :- (و ____ د ژرندې منړک ____)

**ژندري**:- (ژ+ن+د+ر+ ي) [اس. مو.ج: ژندرۍ] جندري. جنتري. د زرګرانو یو اله چې د زرو تارونه په کښې راښکلو سره جوړولے شي.

**ژنده پیل**:- (ژ+ن+دَه + پې+ل) [ف. تر. مذ.ج. پیلونه. پیلانې] (۱) لوے هاتي. (۲) مست هاتي.

**ژندال**:-(ژ+ن+دا+ل) [فر. اس. مذ.ج. لان] ژنرل. په فوځ کښې یوه لویه عهده جرنیل په انګریزۍ کښې ورته جنرل وائي. د پاکستان پښتو د فرنچ ژبې په ځاے د انګریزۍ نه متاثره. ځکه دلته د جنرل لفظ استعمالېږي.

____ **قونسل** :-.قونسل جنرل. لوے کونسل چې عمومي اختیارات د یو حکومت د طرفه بل حکومت کښې لري. (و ____ ژنرال)

**ژنکے**:- (ژ+ن+ ړ+کے) [اس. مذ.ج: ژنکي] (۱) زلمے. شاه زلمے. خوان. نوې خوانۍ ته رسېدلے. (۲) د وادۀ زلمے (۳) ښکلے هلک. محبوب.

**ژنې**:- (ژ+ن +ړ+ ئ) [پ ق. اس. مؤ] د ګېو بزو قلمه چې ترینه د لښتۍ یا د رباب ژئ جوړولے شي.

**ژنې**:- (ژَ+ن+ړے) [اس. مذ.ج: ژنې] (۱) خوان. زلمے (۲) دوادۀ زلمے.

سترګې نۀ پورته کوي له ډېره کبره
هغه ژنې په بې ننګه وو بې عاره — عبدالعظیم

ناوې ژنې سره بېل که
د مرګوټې په چیغارې — خوشحال

**ژنیتوب**:- (ژ+ن +ړې+تو+ب) [زلمي توب. نوجواني. د ځوانۍ ـ ښه ځوانۍ. جوانمردي]

**ژنګ**:- (ژَ + ن + ګ) [پ. صف. مو: ژنګه. ج: ژنګې] مراوے. پژمرده. زبېږ.

**ژنګ**:- (ژ + ن + ګ) [ف. اس. مذ. ج: ژنګونه] و ____ ژنګ ____ (ف ____ اس مع) د مشهور مصور او نقاش "مانی" کتاب چې د هغه جوړ کړے یا اختراع کړے تصویر د نوع او نقاشي نمونې په کښې وي.

**ژنګا**:- (ژ + ن + ګا) [پ (مر) . اس صر]

**ژنګار**:- (ژَ+ن+ګا+ر) [ف. اس] و ____ ژنګا.

**ژنګوره**:- (ژَ + ن + ګو + ر+ه) [اس. مؤ] و ____ ژنګورے)

**ژنګورے**:- (ژَ+ن + ګو+رے) [اس. مذ.ج: ژنګوري] د انګور خوشه.

لکه د باغ انګور ئې ډېر وي و خپل پلار ته
مګر درست ژنګور ئې ور کا له سبده — خوشحال

**ژنل**:- (ژ + ن + ل) [پ. مص] شاربل.

**ژواک**:- (ژ+وا+ک) [پ. اس. مذ] ژوند. ژوندون. حیات.

ګذران چې د تېر عمر را په یاد شي
راته ژواک ښکاره د خضر بې بنیاد شي — سعید خټک

____ **خوړلے**:- چې د ژوندون ډېره برخه ئې تېره شوې وي. عمر خوړلے. زوړ. بوډا.

____ **ژواک**:- (اس تر. مذ) زیست روزګار

ژواک ژوندون مې همګي واړه په غم شۀ
غم په مثل لکه اور زۀ سمندر ! — خوشحال

____ **ژوندون** (کول) زیست روزګار کول.

د ګونګټ د ګل د بویه ند بلا ده
ژواک ژوندون واړه په بوئ د نجاست کا — خوشحال

____ **کول**:- ژوندتېرول. زیست کول ژوندون او مرګ. ژوند او مرګ. مرګ ژواک. (مرګ ژواک موسره شریک دے)

**ژوبل**:- (ژو + ب + ل) [صف. مز. مو: ژوبله ج. ژوبلې] پر هار ژلے. زخمي. ټپي. مجروح. جوبل ، ځوبل

ژوند بل ژوبل د خوبانو په نګاه یم
لاتر دا ند زیات غوښېږم چې پتا ده یم — رحمٰن بابا

____ **توب/ تیا**:- د ژوبل کېدو حالت. زخمي کېدنه. ژوبل والے.

**ژوبل**:- اص. ډېر زیات زخمي.

**ژوبلل**:- (ژو+ب+ل+ل) [پ. حص] غېر مستعمل مصدر چې د فعلونو ځنې صیغې ترې جوړېږي.

____ **والے**:- (____ + وا + لَے) [اس. مزج : ___ لِي] زخمي کېدنه. ټپي کېدنه. مجروحیت.

**ژوبلورے**:- (ژو+ب لو+رے) [اس. فا. مز، ج. ژوبلوري] د لښکر سپاهي. سرباز.

**ژوبلول**:- (ژو+ب+ل+و+ل) [پ. حص] زخمي کول. ټپي کول. زخم ورسوول. افګار کول. زوبلول. جوبلول. پرهارژلے کول.

**د نمر سترګې ژوبلول**:- اص. لکه نمر سترګې ژوبلوي یعني نمر ډېر تېزدے. د نمر تېزي او ګرمي پلوشې. سترګو ته نقصان رسوي.

**ژوبلونګ**:- (ژو+ب+ل+و+ن+ګ) [حمص] (و ____ ژوبلونه)

**ژوبلونه**:- (ژو + ب + لَ + و + نَه) [حمص. مو. ج: ژوبلونې] زخمي کوونه. ژوبل کونه. جوبلونه. زوبلونه. ټپي کونه.

**ژوبلوونکے**:- (ژو + ب + لَ + وو + نَ + کَے) [اس. فا. ج: ____ کي] هغۀ سړے چې بل ژوبلوي. زخمي کوونکے (جوبلوونکے. زوبلوونکے. ټپي کوونکے. زخم ورسوونکے.

**ژوبله**:- (ژو +ب + لَه) [ اس. مو.ج: ژوبلې] زخمي کوونه. ټپي کوونه (جوبله. زوبله) زخم رسوونه. مرګ ____ مړي او زخمي کېدنه. په جنګ جنګړه کښې خو مرګ ژوبله ضرور کېږي. مرګ ____ کول. (۱) په جنګ یا مقابله کښې د مخالفې ډلې ځینې کسان وژل او ځنې زخمي کول. (۲) جنګ جګړه کول. کشت و خون کول.

**ژوبله**:- (ژو + ب + لهَ) [پ ق: اس مو.ج: ژوبلې] د ونې داسې څانګې چې په پانړو کښې پټې وي. د پاڼو نه ډکې څانګې او ښاخونه.

**ژوبلېدل**:- (ژو+ب+لې+د+ل) [پ. حص] زخمي کېدل. ژوبل کېدل. ټپي کېدل. زخم وررسېدل. پرهارژلے کېدل (جوبلېدل. زوبلېدل)

**ژوبلېدنګ**:- (ژو + ب + لے + دَ + ن + ګ) [و ____ ژوبلېدنه]

**ژوبلېدنه**:- (ژو + ب + لې + دَ + نَه) [حمص] زخمي کېدنه. ژوبل کېدنه. ټپي کېدنه. زخم وررسېدنه. پرهرژلے کېدنه.

**ژوبلېدونکے**:- (ژو + ب + لې + دو + ن + کَے) [اس فا. مز.ج: ____ کي] زخمي کېدونکے. ژوبل کېدونکے. ټپي کېدونکے.

**ژوبلېده**:- (ژو+ب+لې+دَهَ) [حمص] و ____ ژوبلېدنه.

**ژوینه**:- (ژو+ي+نه) [پ ق. اس. مؤ] یو ګونډی چې که په یو کانړي د پاسه کېښېښودے شي او په بل کانړي ووهلے شي نو اواز کوي. (پښتو ناموس)

**ژور**:-(ژ+و+ر) [صف. مؤ. مو: ژوره. ج: ژورې] (۱) په زمکه وغېره کښې زیات په ښکته تلے یا کنستلے شوے (لکه ژور کوهے) عمیق. زوړ. تهن. (۲) هغه سړے یا کلام چې مطلب ته ئې سړے زر نه شي رسېدے. (اس. مذ) (۲)

کنده. غار. خندق

په ایرو کښې پټ بڅرے
په وښو کښې پټ ژور — رحمٰن بابا

____ **توب / تیا**:- (حمص) د ژور کېدلو حالت. ژوري. عمیق. ډونګے والے.

**ـــــ غاښی** (ـــــ +غا+خَ/ شے) [اپ ق اس. مز.ج: ـــــ غاښي] د اس په غاښونو کښې داوړیشې په شان توره نخښه. چې د هغې نه د اس د عمر اندازه لګولے شي.

**ـــــ غالے** (ـــــ + غا + لَے) (۱) په زمکه کښې ژور کنستلے شوے ځاے وړوکے ډوغل. (۲) هغه څه قدرې کنستلے شوے ځاے چې د باغ د ونې یا بوټې نه چار چاپیره د اوبو د اودربدلو دپاره جوړ کړے شي.

**ـــــ فکر**. ډونګے فکر. هغه فکر چې سرسري نه وي. باریک او ویخ ته رسېدلے فکر.

**ـــــ کوهے**:- هغه کوهے چې تل ئې د زمکې د عامې سطحې نه ډېر ښکته وي. ډونګے کوهے.

**ـــــ کول**. تهن کول. د عامې سطحې نه ډېر په ښکته کنستل. ډونګے کول.

**ـــــ کېدل**. (پ. حص) تهن کېدل. ډونګے کېدل. د زمے د عامې سطحې نه ډېر ښکته. کنستلے کېدل.

**ـــــ لینګے**:- (ـــــ + لی + ن + ګَے) [اس. مز.ج: ـــــ لینګي] وړوکے شان کوغالے. هغهٔ قطه یا ډوغل شان چې د زنګون شاته دننه طرف ته وي.

**ـــــ میچ**:- (ـــــ م+ ے + چ) [اس. مذ.ج: ـــــ میچونه] هغه اله چې د څهٔ څیز یا ځاے ژور والے (عمیق) پرې معلومولے شي.

**ژورنال**:- (ژ+و+ر+ نا+ل) [فر. اس. مذ.ج: لونه ـــــ] جرنل. رساله. مجله.

**ژورنالیست**:- (ژ و+ ر+نا+ل+س+ت) [فر. اس. مذ/ جرنلسټ] صحافي. د صحافت دکار ماهر.

**ژورنالستي**:- (ژ و+ ر + نا +ل + س + تي) [فر. اس. مذ] د جرنلسټ سره متعلق. صحافتي. داخباراتو او رسالو سره تړلے.

**ژورول**:-(ژ+و+ر+و+ل) [اپ. حص]په زمکه (وغېره) کښې په ښکته کنستل. وړوکے کنستلے شوے ځاے (کوهے وغېره) نور په ښکته کنستل. (داکنده لږه نوره هم ژوره کړه)

**ژوروونکے**:- (ژ+و+ر+وو+ن+ کَے) [اس. فا. ج: ـــــ کي] هغه کس چې څهٔ څیز یا ځاے په کنستلو د عامې سطحې نه په ښکته کوي چې څهٔ څیز له ژورتیا ورکوي. عمیق ورکوونکے. عمیق کوونکے.

**ژوره**:- (ژ + وَ + رَ) (اس.لو. ج: ژورے) (۱) هغه ځاے چې د خواو شا په نسبت ئې سطح ښکته وي. تهن ځاے. کنده. نشیبي. ۳) د لوړې په مقابله کښې مخ په ښکته زوېږ. (۳) (صف) د ژور تانیث.

**ژوره**:- (ژ+و+ ر+ه ) [اس. مو. ج: ژورې] (۱) جوره. زوره. جوکه. (داوبو مشهور چینجے چې د نبي ادم وغېره وینې څښکي) (۲) تشبیهاً هغې سړي یا ښځې ته وئېلے شي چې په څهٔ مقصد پسې شي نو تر هغې ئې نه پرېږدي چې خپل مقصد ترې ترسره نه کړي. چاپسې کېدونکے.

**ـــــ اچول**:- (و ـــــ ژوره لګول) ـــــ په کاڼي لګول- د بې کچه شرم سړي نه د څهٔ حاصلولو کوښښ کول.

**ـــــ په کاڼي نه لګي**. په کاڼي نوکه نه لګي یعنی د سخت او شوم سړي نه وصولي نه شي کېدلے.

**ژوره/ ژورې**:- ـــــ لګول په بدن ژوره یا ژورې ننبتول. چې د بدن نه وینې راکاږي او څښکي. د وینو وښکلو دپاره په بدن ژورې ننښلول.
(پخوا دا یو قسم علاج وهٔ. خرابه وینه به په دې طریقه ویستې شوه.

**ـــــ ننښلول**. (او ـــــ ژوره لګوول)

**ژوربدل**:-(ژ+و+ر+ے+د+ل) [اپ. حص] کنده یا کوهے وغېره لور په ښکته کنستلے کېدل. تهن کېدل. ډونګے کېدل.

**ژوربدنګ**:- (ژ+و+ ر+ے+د+ ن+ګ) [احمص] ژورکېدل. تهن کیدل. د عامې سطحې نه ښکته کېدنه. ډونګے کېدنه.

**ژوربدونکے**:-(ژ+و+ ر+ے + دو + ن + کَے) [اس. مف]هغهٔ څیز یا ځاے وغېره چې د عامې سطحې نه په ښکته کېدے شي. د ژور کېدو صلاحیت لرونکے.

**ژوړ**:- (ژ + وَ + ړ) [اپ.اس.مذ] (و ـــــ زوړ)

**ژول**:-(ژ+و+ل) [اپ. حص] د پښتو غېر مستعمل مصدر دے چې ځنې صیغې ترې جوړولے شي. ژوندے اوسېدل. ژواک کول.

**ژولېده**:-(ژ+و+لی+د+ه) [ف. صف] (۱) په خپله کښې اولول یا ننښتي. (ویښتنهٔ) (۲) پریشان. پریشانه. خوارهٔ . خوارهٔ شوي.

زهٔ ژولېدهٔ تر یم که مجنون ژولدېدهٔ تر
هېڅ خبره مه کړه سره دواړه سر په سر خوشحال

**ـــــ حال**(ـــــ + حا + ل) [ف. تر] پریشانه. بد حال. پریشان حال.

**ژوند**:- (ژ+و+ن+د) [اس. مذ.ج: ژوندونه] زندګي. حیات.

**ـــــ اخرته رسېدل** :- مرګ راتلل. مړکېدل.

**ـــــ اوبهٔ** (ـــــ + او + ب) اب حیات. هغه فرضي چینه چې د هغې داوبو په څښکلوېني ادم تل تر تله ژوي.

**ـــــ باریابوج کېدل**:(س درد) د ژوند نه مایوسي. څرګندونه ده. ژوند په مجبوري تېرول. د ژوند نه مرګ غوره ګڼل- ډېره سخته یا محنت راتلل.

**ـــــ بخښل**. ژوند ورکول. زندګي عطا کول. حیات بخښل.

**ـــــ بخښونکے** :-(ـــــ + بَ + خو/شو + ن + کَے) (۱) ژوند عطا کوونکے. چاته ژوندي پاتے کېدو حق یا اختیار ورکوونکے. (۲) حقیقي ژوند عطا کوونکے-خداے پاک.

**ـــــ پوهه**:- (ـــــ + پو + هَه) [د ژوند علم. علم حیات.]

**ـــــ پیټے کېدل**:- ژوند تریخېدل چې تېرول ئې بوج یا مجبوري شي. ژوند ګرانېدل.

**ـــــ ترخېدل**. په ژوند کښې ناسازې پېښېدل. په ژوند کښې ګرانې یا سختې ورد وخاربدل-

**ـــــ تېرول (چاسره)**:- چاسره په ګډه یا په یو کور کښې ژوند کول. چاسره یو ځاے استوګنه کول- د عمر شپې ورځې تېرول.

**ـــــ تېربدل** عمر تېرېدل. د عمر ورځې شپې تېرېدل.

**ـــــ حرامېدل**:- اص- ژوند سختېدل. ژوند چې تېرول ئې ډېر ګران وي.

**ـــــ څهٔ بر بوقی ده** :- ژوند د بر بوقی په شان ناپائیداره دے. د ژوند اعتبار نه شته.

**ـــــ درنېدل**:- اص- ژوند په سخته کښې تېر ېدل- ژوند په تکلیف او کړاک کېدل.

**ـــــ ترې تېرېږي**:- عمر دې تېرېږي. د ژوند ورځې شپې دې تېرېږي. خوشحالي وي که خفګان خود ژوند ورځې شپې اوړي. (عموماً د مایوسي او د فکر مندي په حالت کښې وئېلے شي)

**ـــــ دوي**. چې سړے ژوندے وي نو ډېر کارونه سر ته رسولے شي. ژوند شرط دے.

**ـــــ ضائع کول**. عمر ضائع کوله. د ژوند وخت خرابول- بې کاره او بې فائدې کار کول. یا بېخي څهٔ کار نهٔ کول.

**ـــــ عذاب کېدل**. په ژوند کښې سختې او ګرانې پېښېدل.

**ـــــ عطا کول**. و ـــــ ژوند بخښل-

**ـــــ کول**:- ژوند تېرول. ژوندے اوسېدل. عمر تېرېدل.

**ـــــ ګرانېدل**: (۱) په ژوند کښې ګرانې پېښېدل. د ژوند د پاره د ډېر (زیات) محنت مشقت ضرورت پېښېدل. (۲) د ژوند د ضروریاتو قیمتونه ډېر زیاتېدل.

**ـــــ لرل** :- حیات لرل. د ژوند په حالت کښې بودل.

**ـــــ نهٔ تېرول (چاسره)** د طبیعت د اختلاف یا د مخالفت په وجه چاسره یو

ځاے نه پاتې کېدل.

ـــــ **نهٔ تېرېدل ( چاسره)** چا سره یو ځاے ژوند نه تېرېدل د مخالفت او د طبعیت د اختلاف په وجه چا سره یو ځاے یا په یو کور کښې استوګنه نه کېدل.

ـــــ **وبال/ (وبال کېدل)** ژوند په تکلیف کښې تېرول. د ژوند نه په نه ژوند خوشحاله کېدل. ژوند یو عذاب کېدل.

ـــــ **وژواک**: واړه هم معني لفظونه دي. زیست روزګار. ژوند او سره اوسېدنه.

ـــــ **(ئې) تریخ دے**: په ژوند کښې ئې اطمینان یا خوشحالي نه شته. ناسازي او ګراني ورته پېښې دي.

**په ـــــ تنګېدل**:-په ژوند کښې نا سازي اوګراني پېښېدل. داسې حالات ورپېښېدل چې بني ادم د ژوند نه په مرګ خوشحاله وي.

**په ـــــ حیرا نېدل**: ژوند ګرانېدل. د ژوند ګرانو یا سختو په وجه په خپل ژوند تنګېدل.

**په ـــــ خاوري (کېدل)** (۱) ژوندے مړکېدل. (۲) په ژوندوني ورک نومي کېدل. (۳) د بد نامۍ. یا کسمپرسۍ. ژوند تېرول.

**تر ـــــ پورې** - تر څو پورې چې ژوندوي. ترحیات پورې. (دا هر څهٔ ستا تر ژونده پورې دي)

**د ـــــ اوبهٔ** (اس جمع)اب حیات د هغې فرضې چینې اوبه چې په څښکلو ئې بني ادم تل تر تله ژوندے وي.

**د ـــــ : د خوږو پوهېدل**. راحت یا ارام راتلل. ښهٔ حالت پېښېدل.

**د ـــــ په خوند پوهېدل**. (۱) په ژوند کښې خوشحالۍ راتلل. د ژوند خوندناک کېدل. ښهٔ په عیش ارام ورځې تېرول. (۲) په مقصد کښې کامیابي موندل.

**د ـــــ په خوند نهٔ پوهېدل**. په ژوند کښې د خوشحالۍ د سامان نیستیا یا فکرونه اندېښنې ورپېښېدل. ژوند بې خونده کېدل. داسې خراب حال یا پېښه وردوځارېدل چې ژوند پرې تریخ شي. ژوند تریخېدل.

**د ـــــ خوند نهٔ پاتې کېدل**. په ژوند کښې د خوشحالۍ څهٔ څيز نه پاتې کېدل. په ژوند کښې دد لچسپۍ څهٔ څيز نه پاتې کېدل. (۲)په خلقو کښې مینه محبت او اخلاص نهٔ پاتې کېدل.

**د ـــــ ته خفه**: اص. د ژوند نه وېزار چې ژوند تېرول ورته ډېر ګران یا سخت شي. خپل ژوند نه تنګ شوے. چې نور ژوندے پاتے کېدل نهٔ غواړي.

**د ـــــ نه لاس وینځل**: (محاوره) د ژوند طمع نهٔ کول. د ژوند امېد نهٔ پاتې کېدل. ځان په مړ حسابول.

**د ـــــ نه وېزار**:- اص. و ـــــ د ژوند نه خفه.

**د ـــــ ورځې پوره کول**:- اص. د ژوند ورځې ډکول. د ژوند ورځې شپې اړول. مرګ ته نزدې کېدل.

**د ـــــ ورځې ډکول**:- اص. و ـــــ د ژوند ورځې پوره کول.

**د ـــــ ورځې شپې اړول**: د عمر ورځې تېرول. د خپل عمر ورځې پوره کول. عموماً د ژوند په حقله د مایوسۍ او د بې اطمینانۍ د اظهار په وخت وئېلے شي.

**د ـــــ ورځې شپې پوره کول**: د عمر پاتې ورځې سر ته رسول. عموماً د مایوسۍ یا ژوند سره د زړهٔ تړون د نه پاتې کېدو په موقع وئېلے شي.

**که ـــــ وو/وي** : یعني که زهٔ ژوندے وم که ژوند راله مهلت راکړو. کله کله ورسره "که خیر وي" هم زیاتولے شي. په مستقبل کښې د څهٔ کار کولو په موقع وئېلے شي. د "انشا الله" بدل دے.

**له ژونده لاس وینځل**: د ژوند امېد نهٔ پاتے کېدل. خپل ځان په مرګ شمېرل.

**له ژونده مړېدل**: د ژوندد مشکلاتو نا کامیو وغېره په حقله په ژوند کښې دلچسپي نهٔ پاتې کېدل. د ژوند نه وېزاره کېدل.

**ژوند مستعار**:- (م + س + تَ + عا + ر) [ پور کړے ژوند. عارضي ژوند. هغه ژوند چې څهٔ اعتبار ئې نه وي چې کله به بیرته واخستے شي.

**ژوندانهٔ**:- ژ +و+ن+دا+نَ+ه [اس](۱) د ژوند اضافي یا مجروروي حالت دے لکه د ژوندانهٔ خبرې یا ترژوندانهٔ پورې. (۲) ژوند. ژوندون.

ـــــ **جګړه**: تنازع للبقا. د ژوندي پاتې کېدو د پاره کوښښ او مقابله.

**ژوندوبهٔ**:-(ژ+و+ن+دو +ب+ه) [اپ تر. اس جمع]د ژوند اوبهٔ مخفف دے.

(و ـــــ د ژوند اوبهٔ)

**ژوندون**:- (ژ + وَ + ن +دو + ن) [اپ. اس.مذ]ژوند. حیات

ـــــ **په دار کول (دچا)** : د چاژوند داسې ګرانول لکه چې څوک په دار ختلے وي او تر مرګه پورې په سخت تکلیف او عذاب کښې وي. ډېره سخته او تکلیف چاته وردوځارېدل. ډېر زیات تنګول.

ـــــ **په دار کېدل**: ژوندون په ډېر سختۍ سره تېرېدل. لکه چې په سولۍ ختلے سړے په سخت تکلیف سره تر مرګ وخت پورې وي.

ـــــ **تر خول**: (د چا) چاته تکلیف او غم وردوځارول. ډېر زیات تنګول.

ـــــ **تریخول/ ترخول**: ژوند بې ارامه کول. د خپل عمل یا د مخالفت په وجه د چا په ژوند کښې څهٔ نا قلارې او بې اطمینانې پېدا کول.

ـــــ **جګړه**: تنازع للبقا.

ـــــ **کول**: ژوند تېرول. ژوندے پاتې کېدل

**ترژوندونه پورې**: (و ـــــ تر ژونده پورې)

**دژوندون اوبهٔ**: و ـــــ د ژوند اوبه.

**ګډ ـــــ**: (ګَ + ډ) په یو ځاے ژوند تېرول. د ځینو حیواناتو دا فطرت وي چې هغه په یو ځاے سره په ګډه سره ژوند تېروي (بني ادم هم په دې کښې شامل وي.

**ژوندونے**:-(ژ+و + ن + دو + نے) [اصف. مذ]د ژوند به حالت کښې. ژوندے.

**ژوندۍ خورده**:-(ژ+وَ+ن+دَئ+خ+ر+دَه) [اپ ق. خپ تر. مو. ج. خوردې] هغه چینجے چې د جزامي (د برص مریض) د پوزې نه راپرېوځي. بیائې وچ کړي او مېده خاورو سره ګډ کړي او بیا دجزام مریضا نوله دارو په طور ورکولے شي. وائي چې د مرض دپاره مجرب دارو دي.

**ژوندۍ مرۍ**:- (ژ + وَ + ن + دَ + ئ + مَ + رَ + ئ) [اپ ق. اس مو] ژوندۍ مهره. د مهېنې مهره یو قسم.

**ژوندۍ مهره**:- (م + ه + رَه) [اس. مؤ] په شطرنج وغېره لوبه کښې هغه مهره چې په مېدان (سباط) کښې په عمل وي او د حریف دلاسه "وژلې شوې" یا پوچه شوې نهٔ وي.

**ژوندے**:- (ژ + وَ + ن + دَ ے) [اس.مذ: ج. ژوندي]هغهٔ انسان یا حیوان چې ساه په کښې وي. حیات.

ـــــ **اوسې**:-دعائیه جمله ده. د شاباسې په موقع وئېلے شي. شاباش. افرین. اباد اوسې.

ـــــ **به رانه نهٔ ځې**: د دښمن یاد مجرم وغېره په حقله وئېلے شي چې اوس به رانه ژوندے بیرته نهٔ ځې. ضرور به دې وژنم.

ـــــ **به رانه نهٔ ځې (ځې وغېره)** (محاوره) یعني ضرور به ئې وژنم.

ـــــ **بیرته تلل**:- په لاس راغلے دښمن ژوندے د لاسه وتل. عموماً نفي په صورت کښې استعمالېږي. لکه ژوندے به رانه بیرته نهٔ ځې. ضرور به وژلے کېږے.

ـــــ **پرېښودل**: (۱) معني واضحې دي. بغېر د وژلو ازادول (۲) عموماً په نفي کښې استعمالېږي یعني ژوندے نه پرېښودل. بې وژلو نه پرېښودل. هرومرو وژل

ـــــ **تلل د لاسه وتل**: د راګیر شوے مجرم یا د ښمن تښتېدل او وژلے

کېدو نه بچ کېدل.

ـــــ **دې وي (فلانے)** دعائيه جمله ده. د شا باش او د تعريف په موقع وئيلے شي. زنده باد.

ـــــ **ښخول**: (۱)يوښي ادم بغير د وژلو نه ژوندے په زمکه کښې ښخول او په خاورو پټول. (چې مړشي)(۲) پخوا دا هم د مجرمانو د پاره يو قسم سزا وه.

ـــــ **قام/ اولس**: هغه قام يا خلق چې جوش او ولوله ئې تازه وي او د خپل مقصد دپاره په حرکت راتللو هر وخت تيار وي.

ـــــ **کول**: (۱)د مرګ نه پس بيا ساه په کښې اچول. حيات ورکول. (۲) د مايوسۍ د حالت نه راويستل او پراميده کول. (۳)د کمزورۍ او د ضعف نه پس طاقت او توازن په چا کښې پيدا کول. (۴) تازه کول. لکه مړ اور ژوندے کول.

ـــــ **کېدل**: (۱)د مړکېدونه پس ساه په کښې راتلل. حيات موندل. (۲)د مايوسۍ د حالت نه راوتل او پراميده کېدل. (۳) د کمزورۍ او ناتوانۍ نه پس طاقت او زور پيدا کېدل. په يو کس يا قام کښې حرکت او د عمل قوت پيدا کېدل. (۴) تازه کېدل. لکه مړ اور.

ـــــ **کېدنه**: (ـــــ + کي + د + نَه) (حمص)د ژوندے کېدل حاصل مصدر د ژوندي کېدلو حالت.

ـــــ **لرل**: (۱)ژوند ورکول. ژوندے ساتل. خدا ے دې ژوندے لره. (۲) قائم لرل. په زړهٔ کښې ساتل. دا جذبه دې تل ژوندۍ لره.

ـــــ **مچ څوک نه شي تېرولے**: ناکاره او کرکېجن کار څوک په خپله خوښه نه شي کولے.

ـــــ **نهٔ پرېښودل**: د دښمن يا مخالف يا د مجرم په حقله وئيلے شي چې ضرور به وژلے کېږي. نور به ژوندے نه پاتے کېږي.

ـــــ **نيول/ ګرفتارول**: عموماً د مجرم يا ددښمن په حقله وئيلے شي چې د وژلو په ځاے ژوندے په لاس راوستل بغير د وژلو ژوندے قابو کول او ګرفتارول.

ـــــ **يا مړ (پيدا کول)**: د دښمن يا مجرم په حقله وئيلے شي چې که ژوندے ونيولے شي يا (په مقابله کښې) ووژلے شي. په هر صورت کښې تر لاسه راوستل.

**چې ـــــ ئې نوډېر څهٔ به ويني**: په داسې موقع وئيلے شي چې څهٔ خرابه او ناشونې واقعه په مشاهده کښې راشي. يعنی که ژوندے ئې نو په دنيا کښې به داسې ډېرې ناشونې ويني.

**د مړ ژوندي پته نه لګېدل**: (۱)د چا داسې ورکېدل چې هيڅ خبرئې نهٔ رارسي چې ايا په ژوند ژوندے او که مړ شوے دے.(۲) داسې ورکېدل چې هيڅ قسم خبرئې نه راځي. ببخي ورکېدل. لاپته کېدل. عدم پته کېدل.

**ژوندے نوم**: نوم پاتې کېدل. نوم او شهرت ترتله پورې قائم پاتې کېدل. د مرګ نه پس هم يادېدل.

**ژونديتوب**: (ژ+و+ن +دي+ تو+ب) [حمص]د ژوند کول حاصل مصدر. د ژوندي سړي حالت.

**ژوندے رشک**: (ر + ش + ک) [اپ ق . ب تر. مز]د يو مرض نوم دے چې په بدن سړي سړي دانې راوخيژي چې ډېر خاربنت کوي .

**ژوندے ژړاند**: (پ ق. صف) (۱) هغه سړے چې په ژوند پرې د مرګ ژړا وشي. ژوندے ورک شوے چې د مړي ژوندي پته ئې نهٔ لګي. (۲) هغه څيز چې موجود وي خو لټون په وخت نه موندلے کېږي.

ـــــ **ورکېدل**: چې يو سړے ژوندے وي او ورک شي. مجازاً يو موجود څيز په سپين ميدان کښې ورک شي.

**ژونديني**: (ژ + و + ن + دی + نے) [صف]او ـــــ ژوندونے.

ځـان پـه ژونـدينـے د مړو په شمار کړه
نيستي نيستي ده څوک پرې خبر نهٔ دي　　خوشحال

**ژوول**: (ژو + و + ل) [اپ. حص](۱) په خولهٔ کښې نيولو سره د څهٔ څيز يا اوبهٔ راښکل او چوپل (لکه ګني ژوول) (۲) په غاښونو سره نرمول. لکه مسواک ژوول.

**ژوولے**: (ژو+ و+ لے) [اس. صف. ج ـــــ لي] هغه څيز چې په خولهٔ کښې چوپلے شوے وي او رس ترې راښکلے شوے وي. چوپلے. چوولے.

**ژوونګ**: (ژو+و+ن+ګ) [او ـــــ ژوونه]

**ژوونه**: (ژو+ وُ + نَه) (حمص) د ژوولو عمل ـ چوپنه. په خولهٔ کښې رس راښکنه. جوونه.

**ژووونکے**: (ژو+وو+ن+کے) [اس. فا. ج ـــــ کي] د ژوولو عمل کوونکے. چوپونکے. په خولهٔ کښې د څهٔ څيز نه رس يا اوبهٔ راښکونکے.

**ژووونی**: (ژو+وو+ن+ ئ)[اپ. ق. اس.مو]د ژولو يا د چوپلو د څهٔ څيز د ومره قدرې مقدار چې په خولهٔ کښې راځي.

**ژوه**: (ژ+و+ه) [د تعريف کلمه. ژوندے اوسې. زنده باش.]

**ژوي**: (ژ + وَے) [اس. ج: ژوي. مو: ژوې] د ساه والاڅيزونه. ځان دار.

**ژوے**: (ژ+وے) ژوندے به ئې.

**ژويل**: (ژو+ئ+ل) [اپ. مص مت](و ـــــ ژوول)

**ژوئن**: (ژو+ئَ+ن) [ـ ق] د ژولو څيز. هغه څيز چې د ژوولو سره تعلق لري.

**ژوينه**: (ژو + ئ + نَه) [حمص](و ـــــ ژوونه)

**ژئ**: (ژَ + ئَ) [اس. مو](۱) د ليندې خاص مزے چې د ژئ تارنه جوړولے شي. (۲) د ګډو بزو د کلمو نه جوړ شوے غټ تار چې په ليندو يا رباب وغيره ساز کښې پکارېږي.(۳) غاړه. کناره (۴) حاشيه.

**ژئ**: ـــــ په ژئ تر مورګو پورې ډک. لبالب.

**ژئے**: (ژَ + ئے) [اپ. ق. مز. ج: ژيان]د اوبو مشک.

**ژيان**: (ژ+يا+ن) [ف. صف] قهرېدلے. غضب ناک. ويروونکے عموماً درنده ځناور په حقله استعمالېږي. لکه شير ژيان.

**ژيباړه**: (ژی+با+ړهٔ) [او ـــــ ژباړه]

**ژيبه**: (ژے + بَ) [او ـــــ ژبه]

**ژېړ**: (ژ+ي+ړ)(۱)زېړ رنګ. زرد (۲) پيتل. يو دهات. زېړ.

ـــــ **بخن**: (ـــــ + بَ + خ +ن)(و ـــــ زېړ بخن)

ـــــ **رنګ** (ـــــ + رَ + ن + ګَ) [و ـــــ زېړ رنګ]

ـــــ **رنګه** (ـــــ رَ + ن + ګَه) [و ـــــ زېړ رنګه]

ـــــ **ژېړ کتل**. [اپ ق]و ـــــ ژېړے ژېړے اړول.

**ژېړ/ ژېړے**: ـــــ ژېړے اړول.(ب ق) (۱)کنايه ده. د خجالت او د شوم په نظر کتل.(۲)د خوراک څهٔ څيز ته د طمعې په قصد کتل.

ـــــ **سرے**: (ـــــ + سَ + رے) [اس. مؤ]د ژېړانګے يو قسم چې تش شوي ژېړ وي او نورې بڼې ئې ابې شان وي.

ـــــ **کڅ**: (ـــــ ک+څ) [اس. مذ] يو قسم کانړے دے چې مردکي ترې جوړولے شي.

ـــــ **کونے**: (اس. مز) زېړ کونے (بلبله) د بلبل يو قسم چې د کونې نه چاپيره بڼې ئې تکې زېړې وي. د سور کونې په مقابله کښې)

ـــــ **کول**: ـــــ زېړول(و ـــــ يړ کول/ زېړول)

ـــــ **کېدل**: ـــــ زېړيدلو زېړکېدل/ زېړ بدل.

ـــــ **ګرځېدل**: (و ـــــ زېړ ګرځېدل)

ـــــ **ګلے**: (ګ + لے) [اس. مز] د بوټو يو قسم دے چې لاړے هم ورته وائي. د سرډی په اول سر کښې زېړ ګلونه کوي. د څاروو خوراک هم دے.

ـــــ **والے**: (ـــــ وا + لے) زېړ والے په رنګ کښې. د زېړ رنګ اثر. زردي.

**ژېړانګه**: (ژ+ي+ړا+ن+ګه) [اس. مو. ج: ژېړانګې] يوه مرغۍ چې زېړ رنګ لري. په فارسۍ کښې ورته يار د هقانک وائي. ژرانکه. ژړانه. زيرانکه.

**ژبړول.** (ژ+ي+ړ+و+ل) [مص] زبېړرنګ ورکول. زبېړرنګے کول. زېړول.

**ژبړونګ**:-(ژ+ي+ړ+و+ن+ګ) [و ــــ ژبړونه]

**ژبړونه**:- (ژ + ی + ړَ + ۇ + نَ) [د ژبړولو کار. زېړ رنګ ورکونه ، زېړ کونه]

**ژبړونے**:- (ژي+ړو +نے) [پ ق. اس. مذ. ج. نې] د بوټو یو قسم چې زېړ بخنې پاڼې لري.

**ژبړوونکے**:-(ژ+یَ+ړ+وو+ن+کے) [اس فاج ــکی] زبېړرنګ ورکوونکے. زېړ کوونکے

**ژبړه**:- (ژ + يَ + ړَه) [پ ق. اس. مو. ج: زبېړې]یو قسم بوټے دے چې جړه ئې د کچالو په شان وي. خورنګ ئې توروي.

**ژبړه**:- (ژ+ي+ړَه) [صف] زېړ رنګ والا. زبېړرنګ لرونکے. زرده.

**ژبړه**:-(ژ+ی+ړَه) [اس. مو. ج. ژبړې]کنځل. شکنځل. کنزل

**ــــ اړول**:- زبړوالے. په چا راوستل. بدنامول. تور پورې کول. لکه: پلانکي ته ئې ژبړه واړوله:

**ــــ کول**:کنځل کول.

**ــــ وراړول**:- (پ ق) ځوک بدنامول. حسد کول یا د چا په ناموس کښې دست اندازي کول.

**ژبړې**:- (ژ +ی +ړ+ ئ) [اس. مؤ]و ــــ ژ یرانکه.

**ژبړې**:- (ژ + ي+ ړَ + ئ) (اس .مو)و ــــ ژبړے.

**ــــ تبه** ( تَ + بَه) [پ ق. مو. ج: ــــ تبې]د ملیریا تبه. موسمي تبه. د مني تبه.

**ژبړے**:- (ژ + یَ + ړَے) [اس. مذ.ج: زبېړي] زبېړي تبه. یرقان.

**ــــ کتل**: چاته د طمعې او د امید په نظر کتل لکه چې څوک اوږے وي خو لاس ئې د خوراک څیز ته نۀ رسي. لکه احمد ژبړے ژبړے کتل او محمد ناک وخوړ.

**ــــ کېدل**: د زبېړي مرض لګېدل. یرقان کېدل.

**ــــ لګېدل**: (په چا) د زبېړي مرض لګېدل. یرقان کېدل.

**د ــــ مرض**: مشهور مرض چې د سړي د رنګ ورسره زبېړشي. خصوصاً دسترګو رنګ یرقان.

**ژبړېدل**:-(ژ+ی+ړي+د+ل)[پ. مص] زبېړېدل. رنګ زېړ کېدل. زېړ رنګے کېدل.

**ژبړ بدنګ**: – (ژ + ئ +ړي+د+ن+ګ) [و ــــ ژبړېدنه]

**ژبړ بدنه**:-(ژ+ئ+ ړي + د + نه) [حمص] د رنګ زبېړېدنه. رنګ زېړ کېدنه.

**ژبړ بدونکے**:-(ژ+ي+ړي+دو+ن+ کے) [اس فا.ج:ــــ کی] زېړ رنګے کېدونکے. په رنګ زېړ لېدونکے. زبېړېدونکے.

**ژړېده**:- (ژ+ړے+ دۀ) [او ــــ ژبړېدنه]

**ژړېده**:- (ژ + ړي+ ده) [و ــــ ژبړېدنۀ]

**ژبړین**:- (ژ+ی+ړی+ن)(صف. مو: ژبړینه ج - ژبړینې) هغه څیزو نه (لوښي پرزې) وغېره چې د زبړو (پیتل) نه جوړې شوي وي.

◈◈◈

# ږ

**ږ**:- (ګې/ژې) د پښتو مخصوص توری دی چې د دوهٔ اواز ئې د ګاف ډک) دی او بل د ژې (ژ) دی. داپه هغو الفاظو کښې استعمالېږي چې برني (یوسفزي وغېره) ئې د "ګ" په شان تلفظ کوي او کوزني (ختټک وغېره) ئې تلفظ د "ژ" په شان کوي. لکه "ږلی"- برني پښتانهٔ ئې ګ + لَ + ی تلفظ کوي.خټک ئې "ژلی" تلفظ کوي - د ابجدو په حساب ددې توري قیمت د "ز" سره سم دی یعني اووهٔ (۷) دا توری په نورو ژبو کښې نه شته، پښتو کښې شلم توری دی او "ژ" نه وروستو لیکلی کېږي.

**ږالی**:- (ګا+لِ+ی) [پ. اِس.مؤ](و ــــ ږلی)

**ږدل**:-(ګ+د+ل)[پ. مص مت]د پښتو برغد مصدر. چې مصدر متروک دی. خو ځیني فعلونه ددې مصدرنه جوړ ېږي اوځیني اېښودل یا کېښودل مصدرنه.

په هر وخت چې دی مغلوب وي تهٔ غالب ئې
تــروهـالــه ئــې قــدمــونــه ږده پــه سر        رحمٰن بابا

**ږدن**:- (ګ+د+ن) [س. مذ]د باجرې د قسم یو قسم غله. پخوا به ږدون ډوډۍ هم پخېدې. د ادني در جې خوراک وهٔ.

غم هسې ناتوان کړم په وېښتهٔ له ځایه لو ېږم
زړهٔ مــې یــووړهٔ دانــه د غوښت یادږدن شوه        علي خان

**ږډون**:- ږ+ډو + ن) [اس معرفه]د پښتنو یوه لویه قبیله. ګډون. جدون

**ږرۍ**:- (ږ + ر + ء+ي) [ق. اِس.مذ](و ــــ ژرۍ)

**ږرۍ**:- (ږ+ رَ + ی) [اس. ئر](و ــــ ږلی)

**ږرنګري**:- (ږ + ر + ن + ګ + ري) [ږ رنګري [ګ+ رَ + ن + ګ + ري]و ـ ږله ګرکي-

**ږړۍ**:- (ږ+ ړ + ء+ي) [اِس. ئر](و ــــ ږلی)

**ږغ**:- (ږ+ غ) (اِس.مذ.ح: ږغونه)(۱)اواز. غږ یا غګ- (۲) په زوره اواز . چغه. نعره. (۳)اوازه. شهرت. نوم.

یاد ښهٔ ؤ زلمیو ږغ دی په مېدان کښې
یاد ښــهٔ دلــبر وځــي پــه جهان کُـوکے        خوشحال

ــــ **بندي**:- (بَ + ن + دي) اواز بندي. په خبرو بندېز. په تقریر پابندي.

ــــ **تلل**:- اوازه تلل. مشهورېدل.

ــــ **کول (چاته، په چا)**:-اواز کول. په زوره اواز. څوک مخاطب کول. یا ځان ته بلل.

ــــ **مه کوه**:-اواز مه اوباسه ـ چپ اوسه- غلے شه-

**ږغ. د ږوغ**:- (ګَ/ ژَ + غو + ږ+ غ) [ب حر. مذ](۱)غږ. غوږ. اواز. کش کړپ. (۲) د خبرو اترو اواز- اواز بیمارته رسېدل.

**ږغ بد ږغے کېدل**:اِص- بد اواز تلل. اصطلاحاً اودس په اوړېدل. یا هغه ښځه چې په څلویښتې کښې ئې ماشوم مړشي یا ئې د وخت نه مخکښې کچه ماشوم و غورځېږي.

**ږغ په لوړ** ــــ په اوچت اواز- په لوړ اواز- په چغه. په نعره-

**ږغا**:- (ږ+ غا) [بل. کاکړ. اِس.مؤ]خبرې. غږ. ږغ-

**ږغانځه**:- (ږ+ غا + ن + څه) [اس.مو.ج: ږغانځې]ازرکه.

**ږغرل**:- (ږ+ غَ + ر + ل) [پ. اص]غوږل. لغوږل. په غوږ سره اورېدل.

**ږغرلے**:- (ږ+غَ +ر+ لَے) [مف. مذ.ج: ږغرلي. مو: ږغرلې]په غـور سـره اورېدلے. نغوتے-

**ږغرنــه**:-(ږ+غَ + ر + نَـه) [پ. اِص](۱) پـه غــور ســره اورېدنــه. نغوتنــه (۲) حفاظت کوونه. ژغورنه.

**ږغــرول**:- (ږ+غَ + ر + و+لِ) [پ. اِص] ژغــورل. بــچ ســاتل. حفاظــت کــول. محفوظ ساتل.

**ږغرولے**:- (ږ+غ + ر+و+ لَے) [پ ق. مف. مذ.ج: ږغرولي. مؤ: ږغرولې] ژغورلے. بچ ساتلے. حفاظت کړے.

**ږغرونکے**:(ګ/ژ+غ+رو+ن+کَے)[پ.فاع.مذج:ږغرونکي.مؤ:ږغرونکې]غـور ونکے. بچ ساتونکے- محافظ.

**ږغري**:- (ګ/ژ + غَ + رِ + ي)پ ق. اس.مؤ]حفاظت. ژغورنه-

**ږغږغرے**:- (ګ/ ژ + غ + ګ/ ژ + غَ + رے) [ق. اس.مذ](و ــــ ږله ګرکے)

**ږغږغه**:- (ګَ/ ژَ + غ + ګَ/ ژَ + غَه) [اس. مؤ.ج: ږغږغې](۱)غږېدونکے څیز. (۲) چنچڼې.

**ږغږغي**:- (ګَ/ژَ + غ + ګ / ژ + غَ + ي) [اس. مؤ](۱)د غنمو د دانو پوستکے. (۲) د واورې وړه ګوله. ږله ګرکے.

**ږغل**:- (ګ/ژ + غ + ل) اواز کول. ږغېدل. غږېدل. غګېدل.

**ږغــن**:- (ګَ/ژَ + غ + ن) (اس فــا)غږن. غږېــدونکے. غږکــوونکے. خبــرې کوونکے.

ــــ **کېدل**:-(۱)اواز وښکل. غږېدل.(۲) خبرې کول.

ــــ **کېدل**:.(۱) په څهٔ سپیره یا بده پېښه اوړېدل- لکه احمد ږغن شو- (دې په څهٔ سپېره یا بده پېښه واوړېده) (۲)خرابېدل. دا غوړي ږغن شول.

**ږغورل**:- (ګ+غو+ر+ل) [پ. اس] (و ــــ ژغورل)

**ږغول**:-(ګَ)/ ژَ + غَ + ؤ + ل) [پ. اص](۱) غږول. غګول. د کوم سازنه اواز وېستل. (۲) په خبرو کول. خبرې اېستل دچانه-

**ږغولے**:-(ګَ/ژَ+غ+و+لَے)[پ.مف.مذ.ج:ږغولي.مؤ: ږغـولې] (۱) غـږولے ژغولے. اواز ترې اېستلے.(۲) په خبرو کړے.

**ږغونـګ**:- (ګَ+ژَ+ غ +ؤ+نَـګ) [پ.حمـص](۱) ژغونـه. دکـوم سـازنه اواز اېستنه.(۲)په خبرو کوونه.

**ږغوونکے**:(ګَ/ژَ+غ+وو+ن+کَے)[فاع.مـذ.ج:ږغوونکي.مؤ:ږغــوونکې](۱) ژغونکے. د کوم سازنه اواز وېستونکے(۲)په خبرو کوونکے.

**رغبدل**:- (گ/ ژ + غي + د + ل) [اِپ. حمص] (۱) اواز ايستل. اواز پيدا کول. (۲) د کوم ساز نه اواز وتل. (۳) خبرې کول.

**رغبدونکے**:- (رگ/ژ + غے + دو + ن + کَے) (اس. فا) (۱) هغهٔ څيز چې اواز ترې خيژي (۲) ساز يا باجه وغيره چې اواز پيدا کوي. (۳) خبرې کوونکے.

—— **سنيما**:- هغه سنيما چې تصويرونو سره اواز هم پيدا کوي. (زړه اصطلاح ده کوم وخت چې د خاموش فلمونو رواج وهٔ. اوس خو هره سينما (يعني هر فلم) غږېدونکے دے).

**رغيز**:-(گَ/ ژ+ غي+ ز) [صف.] (۱) غږېدونکے (۲) دلسانياتو په اصطلاح کښې په يوه ژبه کښې استعمالېدونکي هغه اوازونه دي).

—— **توري** د رغيز اوازونوعلامتونه (حروف)

**رله گرکے**:- (رگ/ژ+ل+گ+ ژ + کے) [اس. مذ. ج. ـــــ کي] د ږلۍ وړې وړې دانې چې پرله پسې ورېږي. ږرنگري. ږرينگري. دبارانه تښتېدم په ږله گرکي واوړېدم.

متل: د بارانه تښتېدم په ږله گرکي د اوړېدم.

**ږلۍ**:- (گَ / ژ + ل + ئ) [اس. مو] کلـه چې د فضـا يخنۍ لـه کبلـه د باران څاڅکي واوري شي اود اوبو د څاڅکو په ځاے دانې راور ېږي. دې دانو ته ږلۍ وئيلے شي. گلۍ. په فارسۍ کښې ورته ژاله وائي)

آشنائي لکه بنهٔ تول چې ورته رش کړې

جـدائي لـکـه ږلـۍ ورانے د تـول کا خوشحال

—— **ټيټول**:- په چا ږلۍ راورول.

—— **ښکې کېدل**: ږلۍ راورېدل. ږلۍ کېدل.

کذب د هر چا په ښک عمل باندې ږلۍ ده

ښکے دې ږلۍ نهٔ شي د عمل په زراعت حافظ

—— **وربدل**: اِص، د ږلۍ باران کېدل.

له باران سره هسې ږلۍ ووري

چې هر زخم ئې بد تر وي تر ټوپک رحمٰن بابا

**ږمنځ**: (گ/ژ + م + ن + ځ) [اس. مو. ج. ږمنځې] شانه. هغه دندانه داره الـه چې د سرو ويښتـه پرهٔ سمولے شي. گمنز. گومنځ. ږومنځ.

زړهٔ مې له غېرته په گوگل دننه دورشي

ږمنځ چې دې بې پامه ورځي گُتې په کاکل حميد

**ږمنځول**:-(گ+ژ+من+ځو+ل) [اِپ اص] په ږمنځه (شانه) د سرو ويښتهٔ سمول.

**ږمنځونک**:-(گ+ژ+من+ځو+نگ) [اِپ حمص] ږمنځ سره ويښتـهٔ برابرونـه. ږمنځ وركوونه.

**ږمنځوونکے**:- (گ/ژ+م +ن+ځو+و+ن+کَے) [فا ع. مذ. ج: ږمنځوونکي. مؤ: ږمنځوونکې] په ږمنځ ويښتهٔ سمونکے.

**ږمنځبدل**:- (گ/ژ + م + ن + ځي + د + ل) [اِپ. اص] دسر يا د ږيرې د ويښتـو په گمنځ (شانه) سره سمول. ږمنځ کېدل.

**ږمنځبدنګ**:- (گ/ژ + م + ن + ځي+دن+گ) [اِپ ق. حمص] او ـــــ ږمنځېدنه.

**ږمنځېدنه**: (گ+ژ+م+ ن+ځي+د+نه) [اِپ. حمص] ږمنځ وركولے كېدنه.

**ږمنځېدونکے**:-(گ/ژ+م+ن+ژبے/جے+د+ن+کَے) [اِپ. مف. مذ. ج: ږمنځېدونکي مؤ: ږمنځېدونکې] ږمنځ وركولے كېدونكے.

**ږمنځېده**:- (گ/ ژ+م +ن+ځي+دَه) [اِپ. حمص] او ـــــ ږمنځېدنه.

**ږمونځ**: – (گ/ژ + مو+ن +ځ) [اس. مذ] او ـــــ ږمنځ.

**ږنګ**:- (گَ/ژَ + ن + گ) [اس. مز. ج: ږنگونه] جرس. زنگ. ژنگ.

**ږنګـورے**:-(گَ/ژَ +ن+گـو+رَے) [اس. مـذ. ج: ږنگوري] انگـورو خوشـه. ژنکورے.

که چې باغ ئې د يتيم د کونډې گډ کړې

د انگورو به خواږهٔ ږنگوري چونې خوشحال

**ږو**:- (گو. ژو) [كلمه] يو قسم كلمه لكه ستا په سر ستر گو. خداے ږو. (گو)

**ږو**:- خداے ـــــ و ـــــ خداے گو)

**ږو**:- ستا سر ـــــ و ـــــ ستا په سترگو)

**ږواک**:- (گ/ژ + وا+ک) و ـــــ ژواک.

**ږوږ**:-(گ /ژ+ و+ گ + ژ) و ـــــ زوږ. شور.

**ږوغ**:- (گ/ژ + و+غ) و ـــــ ږغ.

**ږومنځ**: (گ/ژو+ م + ن + ځ) [او ـــــ ږمنځ]

**ږومنځې**:- (گ+ ژو + م + ن + ځي) [اِپ. ق. اِس. مذ] يو قسم خودرو بوټے چې په صحرا كښې پيدا ک ېږي.

**ږوند**:-(گ+ژَ + وَ + ن + د) [او ـــــ ژوند]

**ږوندون**:- (گ+ژ + وَ + ن + دو + ن) [ و ـــــ ژوندون]

**ږوندے**:-(گ+ژ+و+ن+دے) [او ـــــ ژوندے]

**ږونګ**:-(گ/ژ+و + ن + گ)و ـــــ كونگ/گونگے.

**ږوے**:- (گ+ژ + وَے) [اس. مذ] (۱) ژوندے. ساه لرونكے. (۲) گواه. شاهد.

**ږې**:- (گَ/ژ + ئ) ـــــ گې.

**ږيـر**:- (گي / ژئ + ر) [ سابقه ] د ږيرې مخفف دے. نورو الفاظو سره د سابقې په طور راځي.

—— **خريلے**:- (ـــ خ + ر+ي + لے) [اِپ تر. مذ. ج: ـــــ خرېلي] هغه سړے چې ږيـره ئـې خرئيلې شوې وي. كـل ږيـرے. يعنـي چـې ږيـره كلـه شـوے. (پخوا ږيره خرئيلے كېدل د ډېرې رسواۍ خبره گڼلے شوه)

—— **كلے**:- اص، (۱) و ـــــ ږير خريلے. (۲) بدنام. رسوا.

څوک د اس د پاسه سور توغ د وړاندې

څوک ږيركلے گرځاؤهٔ شي په خرسور رحمٰن بابا

وې ئې څوک چې به باور كا پد دا واړو

هغه واړهٔ دي ږيركلي پر مخ تور سعيد خټک

**ږيرگۍ**:- (گي/ ژي + ر+ک+ي) [اِپ. اِس تصغير. مؤ] اوړه ږيره.

مرديت خو فتوت حيا حرمت دے

موقوف نهٔ دے په ږيرگۍ يا په چوړت علي خان

**ږيره**:-(ږ+ي +ره) [اس. مو. ج: ږيرې] ريش. د نارينه و د مخ زنې ويښتهٔ.

چې په وخت د زنكدن ؤ كاږې ږيره

تر و نن ولې هسې رنگ ئې بې تدبيره رحمٰن بابا

—— **اوږدول**:- اِص. (۱) ږيره په قينچې وغيره نه قطع كول او لوئېدوته پرېښودل.

(۲) ځنې وخت كم عقل سړي تـه طنزاً هم وئيلے شي چې ږيره دې اوږده كړې ده او په دې خبره نه پوهېږې.

—— **باد باد كول**: بې عزتي كول. بې ابرو كول. لكه د فلانـي ږيره د لوجات باد باد كړه.

—— **پرېښودل**:- اِص. د ږيـرې د خرئيلو عـادت پرېښـودل او ږيـره نـه خرئيل چې لويه شي. ږيره ساتل.

—— **په دروغو سپينول**: اص. (۱) ږيره د نمائش د پاره سپينول طنزاً د هغې سړي په حقله وئيلے شي چې سپينه ږيره ئې ساتلے وي چې د عزت او د ښهٔ عمل نخښه ده خو غلط كارونه كوي. (۲) ويښتـهٔ پـه نمر كښـې سپينول. بې تجربې بودل. عمر په جهالت او حماقت كښې تېرول.

—— **په متيازو خرئيل**: د ځهٔ شرط يا يقين وركولو په موقع وئيلے شي چې

که داکار زما وينا مطابق ونه شي نوزۀ به ږيره په متيازو خريم. ږيره خرئيل هم بد کار دے او بيا د اوبو په ځاے په متيازو خرئيل خو لاډېر بدکار دے. ځکه دا يو ډېر سخت شرط دے چې د بل د قائله کولو د پاره وئيلے شي.

**—— په نمر کښې سپينول**:- اِص. د بې وقوفۍ اوبې عقلۍ کار کول . بې تجربې "بودل" سر په نمر کښې سپينول.

**—— خرئيل**:- (۱) حجامت کول. د ږيرې ويښته په پاکۍ وغېره لرے کول. ږيره لوئېده ته نۀ پرېښودل.(۲) بدنامه کېدل. بې عزته کېدل. (پخوا به ږيره خرئيل يو ډېر بدکار ګڼلے کېدۀ ځکه چې هر چا به ږيره ساتله)، که چا به څۀ ډېر خراب او ناشائسته کار وکړو نو د هغه به ئې ږيره وخرئيله او مخ به ئې ورله تورکړو)

**—— دې اوږده شه**: د لاسه دې څۀ خراب کار وشه. ږيره —— دې وخرئيلے شه. ږيره دې کله شه ـ يعني بدنام اوبې غرته شې. (و—— ږيره خرئيل وغېره)

**—— دې کله شه**: (و—— ږيره دې وخرئيلے شه.)

**—— سپينه**: اِص. د لوے عمر. بوډا.

غابښ وتلي ، ږيره سپينه ، لاتر اوسه
باز په لاس ګرځوم په غرونو په جبال خوشحال

**—— سپينېدل**:- اص. د لوے عمر کېدل. بوډا کېدل.

توره ږيره مې شوه سپينه زۀ حېران يم
چې رحمٰن لا نۀ بالغ شوم نۀ عاقل

**—— شوکول/ ايستل**:- اص. د چابې عزتي کول.

چې بې وختَه ارمان کا په وکت اودۀ وي
د هغو عالمو ږيرې د وکښو دي رحمٰن بابا

**—— ښورول**:- اص. (۱) ږيره خوځول. سرخوځول. عموماً د انکار علامت ګڼلے شي. ځني وخت طنزاً هم د ږيرې خاوند ته وئيلے شي. (۲)ژاولې ژوول. بې معنې او بې دليله خبرې کول.

**—— کړول**:-طمع کول. د چا نه څۀ څيز غوښتل. خواست کول.

**—— کلېدل**:- بدنامېدل. رسوا کېدل.

لاړه ځواني په پيرۍ بدله شوه
کار راوۀ نشه ږيره مې کله شوه سعيد ختک

**په —— توکل**: مجازاً رسوا کول. ذليل کول.

چې توبد د ملوکا په وخت د ګلو
پرې ښائي که د هغو په ږيره توکے خوشحال

**په —— خاندل**:- اِص. د چا عزت پورې مسخره کول. بې عزتي کول

دَ مېړۀ په ږيره نۀ خاندي نو څۀ کا
چې د بل سره خبرې کا خمسورې خوشحال

**په —— ږيره کښې سپين لګېدل**:- اِص. ږيره سپينېدل. د لوے عمر کېدل. بوډا کېدل. ځوانۍ تېريدل.

**په —— کښې وېښتان پيدا کېدل**: اص. په ږيره کښې سپين وېښتۀ پېدا کېدل. بوډا کېدل.

**ږيرې**:- د ږيرې څخه اخېستل په بربت لګول. څۀ څيز د ږيرې نه اخېستل او په بريتو کېښودل. کنايه ده. د بې فائدې کار کولو نه بې فائدې کار کول ـ بې فائدې ځان کړول.

څوک په سپينه ږيره پائي تر قيامته
دۀ په خضر باندې کړے دا احسان دے رحمٰن بابا

**سپين ——** :- اص. د لوے عمر. بوډا.

**لاس په —— کول**:-اص. د يو کار کولو پخه اراده کول.

کار په تش لستوڼي نۀ کېږي بې لاسه
لاس په ږيره کړه بې لاسه آستين مه شه رحمٰن بابا

**لويه —— ساتل**. اِص. ږيره نه قطع کول او پوره ډول لوئيدوته پرېښودل.

**ږيره ور**:- (ګ/ژی +رَه+و+ر)[ا‌ب تر. صف]د ږيرې خاوند . ږيره لرونکے. ږيري واله.عموماً د لوئې ږيرې څښتن ته وئيلے شي.

**ږيرې**:- (ګ+ژی +ر+ ئ) [اِپ. اس. لـو]د جوارو ورې په سر کښې وتې مهينې ريشې يا پټ.

**ږبړے**:-(ګ+ژی+رَے) [اِپ ق. اس. مزا ځنګل.

◈◈◈

# س

**س** :- (سین) د پښتو د پښې یو ویشتم د اردو اتلسم د عربۍ دولسم د فارسۍ پنځلسم توری دی۔ د دنیا په اکثرو ژبو کښې موجود دے س په ځینو ژبو کښې دا په ش بدلولے شي۔ په پښتو دا توری په "چ" او په څ (ت ص) بدلیږي د جمل په حساب کښې ددې قیمت د شپیتۀ (۶۰) برابر دے۔ د وضاحت د پاره دې توري ته سین مهمله یا بې ټکو (غیر نقوطه) سین هم وائي۔

**سا** :- (اس ، مو ، ج : ساګانې اوساوې) (ساه مخفف دے) مراد تري هغه هوا ده کومه چې مونږ د پوزې په لار (یا کله کله د خولې په لار) خپل پرپوس نه ننه باسو او پیاترې راوباسو۔ مرکبات وغیره ئې د "ساه" لاندې اوګورئ۔

**ـــ اچول** :-ده کول لږه شان ساه اخستل. تۀ ورځه زۀ دلته یو ګړۍ ساه اچوم۔

**ـــ په سا**(ق)دم په دم ۔ آناً فاناً۔

**ـــ شړل** :- اص ساه راکښل۔ ساه اخستل۔

**ـــ کښل** :- اص ساه اخستل۔

**ـــ**(سا) (ه اس ،مذ) موسیقۍ په اوو سُرونو کښې اولنے سُر۔

**سابات**:- (سا+با+ت)(اس ۔ مذ ۔ ج : ساباتونه)(۱) څپر (۲) دالان (۳) ډیوډۍ اصلاً دا ټکے ساباط دے ۔ چې په کومه کوڅه کښې چت کړې ځائے ته وائي چې دوه کورونه ئې یو ځائے کړي وي۔

**ساب واله**:- (ساب+وا+ل)(اس ۔فا) سبزي فروش۔

**سابانړے**:-(سا+ با + ن+ ړے + ن)(او ځابانړے)

**سابري**:-(سا+ ب ري)(ع ۔اس ۔ مو)یو قسم ډېره نفیسه ریښمینه کپړه۔

**سـابق**:- (سا+ب+ق)-(ع۔صف۔مـذ۔مو:سابقه)(۱)وړومبے۔مخکینے۔تېر شوے۔لرغون۔(۲)وړاندې کېدونکے۔

څوک ژوندي لوټي بې دربغه قـزاتان دي

څـوک نباش غوندې سابق د سرو پوشاک ته (حافظ)

**ـــ کیدل**:اص۔ د نورو وړاندې کېدل سبقت کول۔

نېکبخت سابق شه په نېکۍ سابق به ځي جنت ته

بهادر بـالـه شـو چې وړومبې د جنګ مېدان ته راغے (حافظ)

سابقاً:-(سا+ب+ق+ن)- (ع) وړاندې شوے ۔پخوا۔اګاهو د مخه۔

**سابقاً**:-(سا+ب+ق+ن)- (ع ۔تنف)-وړاندې د اګاهونه ۔د مخکښې نه ۔

**سابقون الاولون**:- (سا+ب+قو+ن+ل+ا+و+و+لُو+ن)- (ع۔تر۔اس)- هغه کسان چې په څۀ (ښه) کار کښې ئې پېل کړے وي۔ عموماً هغه مسلمانان تري مراد دي۔چا چه په ایمان راوړلو کښې پېل کړے ؤ۔ پخواني تېر شوي خلق۔

**سابقه**:- (سا+ ب + ق)- (ع۔اس۔مو۔ج۔ :سابقې)(۱) د سابق تانیث (۲) هغه توري چې د بل توري نه اول لګولے شي۔ پېش لګولے کېدنه۔(۳) مخامخ کېدنه ۔ تعلق ۔ (۴)پېژندګلو ۔

**ـــ لرل**:- اِص۔ چا سره بنۀ ګڼ تعلقات لرل ۔

**سا بندي**:-(سا + ب +ن +د+ ي)

**سا بندے**:-(سا + بَ + ن + د ے)(پ ۔ اِس ص.مذ)د دَمې دَ بیمارۍ مرض ۔

**سابڼ**:- (سا+ ب+ن+ړ) (او۔صابون)

**سابني**:- (سا+ب+ن+ي) (پ ق ۔اِس ۔ مو) د لوهارسا ښې چې او پر تېز وي۔

**سابـنـے**:-(سـا + ب + نَـ ے) (اس۔مذ :سابنـي) د سـابو خرڅـوونکے۔ سـابه (سـاګ فروش سبزي فروش۔

**سابو**:-(سا+ بو)(اس۔جنس)مېزرے۔ یو خاص قسم غرئیز بوټے چې پلنې پاڼې لري۔ ترې پوزي شکورونه پري وغیره مختلف څیزونه ترې جوړولے شي۔

**سابودانه**:-(سا+ بو+دا+ ن)(اس۔مذ ۔ج۔دانې) "ساګو" نوم وئي تخم چې د مریضانو د پاره ترې په پئیو کښې نرم خوراک جوړولے شي۔ ساګودانه

**سابون**:- (سا+ بُو+ ن)) (او صابون)

**سابونک**:-(سا+بو+نَ+ک) (اس ۔مذ)- یو قسم بوټے دے ۔چې د بانړو خلق هغه و ټکوي او یـوه هفتـه پـه زمکـه کښـې ښـخ کـړي ۔چـې نـرم شـي نـو بیـائې راوباسي او جامې پرې وینځي ۔ (ق)

**سابۀ**:-(سا+ ب) (اس۔جنس) ساګ ۔مشهوره سبزي۔

**ـــ والا**:- سابۀ یا سبزي خرڅوونکے۔سبزي فروش۔ د سر دے سابۀ- د ساګو یو قسم

په سابو کښې د سر دے سابۀ مفید دي

ولـــې بویــه چې څرور ئې خوري کمتر (خوشحال)

**سابې**:- (سا+بې) (اس۔مذ)- سابۀ خرڅوونکے۔ سبزي فروش۔

**سابېړۍ**:-(سا+ بې+ ړ+ ي) (پ ق ۔اِس ۔مو)- هوائي جهاز ۔ طیاره۔

**ساپټ**:- (سا + پ + ټ)- (مذ ۔مو ،ساپټه ،ج : ساپټې)- بالکل ښخي ۔مکمل طور سره ، قطعي ، ساپوټ ۔

**ـــ لېونے**:- اِص- پوره لېونے ښخي لېونے۔

**ساپی**:- (سا + پ + ي)- (اس ۔مو ۔ج :۔ ګانے(۱) هغه کپړه چې د فرنیچر وغېره صفائي پرې کولے شي ۔ جاړن ۔ (۲) تولیه۔ (دا د صفائۍ بدل شکل دے)

**ساپی**:- (سا + پي) (اس ۔مع) صافي د پښتنو یوه قبیله ۔

**سـاپی**:- هغـه سُـورے لوښـے چـې وریـږې (وریجـې) پکښـې صفاکولےشـي نینونے۔

**ساپي‌خېل**:- (سا+پي + خېل) (اس ، مع) - دا اباخېلو یوه وړوکے څانګه چې هغه بیا ۔(نکسپي‌خیل ، خوزه زئ ، اکوزئ) یوسفزئ دي۔

**ساپېدل**:- (سا + پې + دَ + ل) (وـــصافېدل

**سات**: (سا+ت)(اس۔مذ ۔ج :ساتونه) ګړۍ ۔وخت ۔شېبه ۔ساعت.(دا د ساعت تلفظـي شـکل دے ۔ځینـې وخت سـاعت هـم وئیلے کېـږې ځکـه د لیـک صحیح صورت ئې هم "ساعت "دے۔) نور الفاظ او مرکبات ئې د ساعت تر لاندې وګورئ۔

**سات**:(سا + ت)(اس ۔مـذ) دست بـدل شکل ۔بلنـه ۔ (لکـه د ډوډۍ د خـوراک د پاره)

ـــــ **تېرے:** (وـــــ ساعت تېرے)

**ساتک خېل:۔** (سا + ت + ک + خېل) (اس مع)د ناصرويوه څانګه ده۔ چې غلزئ پاونده دي۔

**ساتکزئ:۔** (سا + تک + ز + ئ)(اس مع)د مير زو يو ښاخ دے چې سنزرخېل کـاکړ دي۔ د سـاتک خېلـو پنځـه څـانګې دي۔ رس زئ ، رحمـت زئ ، بادنزئ ، احمد زئ ، او خاکي زئ۔

**ساتګين:۔** (سا+ت+ګي+ن)(ف) د شرابو د ښکلو لويـه پيالـه۔ د شرابو لوئـے جام

(ددې لفظ نور شکلونه دا دي) ساتګين، ساتګني، ساتګي، ساتګينې۔ د ټولو همدغه معنٰی ده)

**ساتل:۔** (سا+ت+ل) (پ۔ مص)(۱) لرل۔ لويـول(۲) حفاظت کول (۳) محفوظه ول۔ کېښودل۔ ژغورل۔ (۴) پالل۔ لکه سپے مرز وغيره۔ (۵) هلک يا (جينۍ) د يار يا معشوق په حېثيت ځان سره لرل او پالنه ئې کول۔

**په زړۀ کښې ـــــ:۔** اص۔ په زړۀ کښې ياد لرل، ياد لرل۔

**ځان ـــــ:۔** اص، ځان بچ کول۔ خپل حفاظت کول۔ځان ژغورل۔

**خيال ـــــ:۔** اص۔ پام لرل ، چاله توجه ورکول ، د چا حفاظت يا تربيت تـه پام لرل

**ښۀ ـــــ:۔** اص۔ ښه پالنه او تربيت کول۔ د ښۀ،بد،تنګ وخت دپاره

ـــــ:۔اص۔ يو څيز د راتلونکي وخت د ضرورت د پوره کولو د پاره محفوظ ساتل خوندي کول۔

**ساتلے:۔** (سا + تَ + لے) (اس مف۔ ج۔ ساتلي۔ (۱) ساتلے شوے، پاللے (۲) هغه هلک چې بل سړي د يار په حېثيت نيولے وي (ساتنه ئې کوي)

**ساتن:۔** (سا + ت + ن) (حمص) ساتنه۔ ساتل۔ بچ کونه۔ محفوظ کول۔

هغــه بختــور دے چې اهمن ئې شوله غارته
ملک بدانو وران کړو ساتن سخت شو درختونه (حافظ)

**ساتنځائے:۔** (سا+ت+ن+(د)ځا+ ئے)(اس ۔مذ ۔ج۔ونه) سپانځاے۔ سپارلځاے۔ هغه ځاے چې پکښې پيسې ټکې يا نور څيزونه کښېښودے شي۔ تحويل خانه۔

**ساتندوئے:۔** (سا+ت+ن+دو+ ئے) (اس فا ۔مذ ۔مو۔ ساتندويه) (۱) ساتونکے۔ بچ کونکے۔ ژغورونکے(۲) خدائے پاک۔

**ساتندويه:۔** (سا+ ت+ ن+ دو+ يَہ) (پ۔اس فاع۔ مو) وـــــ ساتندوے۔

په مريد مېدان به ودرېږي درګــاه ته
د عــــاجــــزو امتــــيانو ساتندويه (حافظ)

**ساتنګ:۔** (سا + تَ +ن + ګ) (وـــــ ساتنه)

**ساتنګي:۔** (سا +تَ +ن+ک+ ي) (پ۔اس ۔مــو)۔ زړۀ تنګېدنــه۔ ســاه بندېدنه۔

**ساتنګے:۔** (سا+ت+ن+ګے)(پ اس مذ)زړخفـه کېـدُونکے۔ پـه نـۀ ښۀ خبره خفـه کېدُونکے۔ لنډپاے۔

**ساتنه:۔** (سا + ت + ن)(۱) پالنه ، حفاظت، نګهباني ، سا تنګ۔(۲) پاس کول ، پوره کول ، لکه د خپلې خبرې ساتنه کوي۔پې۔ ـــــ ورکول ، ښاروے۔چاله غوا وغيره ښاروے ساتلو د پاره ورکول او ښۀ بدل ورسره ورکول۔ (لکه بچې به ئې نيم ستا وي وغيره)

**ساتو :۔** (سا +تُو+) (رق) (اس۔مذ ۔ج۔ان ، مو۔نه) ساتودن۔ خدمتګار : د ناجوړه سړي۔

**ساتو:۔** (سا +تُو)(صف مذ)ساتونکے ، لرونکے۔

**ساتوان:۔** (ق) (سا + ت + وا + ن) ساتو۔ د بيمار خدمت کونکے۔

**ساتور:۔** (سا+ تُو + ر)(پَ ق۔اس۔مذ)هغـه الـه چې غوښې او هډوکي پرې ټو ټې کوي۔ ټوکه۔ هډ کپ۔ کټېره۔ د قصابانو اوزار۔

**ساتونکے:۔** (سا+ تُو + ن + کے) (اس فا ۔مذ ۔ج ساتونکي)(۱) ساتندوئے۔ بچ کوونکے۔ محافظ (۲) پيسې ټکې وغيره بچ کوونے کفايت شعار۔

**ساتونے:۔** امانت ګر۔

**ساتۀ:۔** (سا+ ت + ه)(حمص) ساتنه لرل۔ محفاظه ول۔

راز د زړۀ نه ساتۀ نۀ شي په زړۀ کښې
پـه سـاتـۀ کښې ئې اسـتاد وماته پند کړ (خوشحال)

**کول:** ـــــ اص۔ ساتنه کول۔ ساتل۔ پالنه۔ روزنه کول۔

ښائسته پــه جهان ډېر دي ښۀ پوهېږي
په ښۀ خوئي چې د عاشق د زړۀ ساتۀ کا (خوشحال)

**ساتېرے:۔** (سا+ تې + رے)(اس ۔مذ ۔ج۔ـــــ ي)د ساعت تېرے مخفف دے۔ سېل او تفريح۔

**ساټ باټ:۔** (سا+ ټ + با + ټ) (اس ۔مذ) زېب و زينت۔ ارائش۔ (ق)

**ساټن:۔** (سا + ټ + ن) (انګ۔ اس۔مذ)يو قسم مهينه او قيمتي کپړه۔ د يوې ريښميني کپړې نوم۔ اطلس۔

**ساټول :۔** (سا+ ټو + ل) (اق)(اس۔مذ ۔ج۔ونه)ټوکا۔ کټېره۔ (هغـه الـه چې غوښـه پرې قيمه کوي)

**ساټۀ :۔** (سا+ټ)(وـــــ څاټۀ)

**ساجد:۔** (سا+ جِ + د)(ع۔اس فاع۔مذ ۔مو :ساجده)سجده کوونکے۔

**ساجده:۔** (سا+ جِ + دَ) ع۔اس۔مو) سجده کوونکې۔

يوه لور د پېغمبر ده مبارکه
بلــه ډېره ساجده او صائمه (خواجه محمد بنګش)

**ساچمه:۔** (سا + چ + مَ) اس۔مو۔ ج۔ ے)د ټوپک چره۔ زرنيخ۔

**ساحت:۔** (سا + حَ +ت)(ع۔مذ ۔ج۔ساحتونه)(۱) مېدان ډاګـه (۲) احاطه۔ غولے۔ د کور دننۍ برخه(۳) ولکه (ولقه) چکله (ا ۔ق)

**ساحر:۔** (سا+ح+ر) (اس ۔مـذ ۔ج۔ســاحران)مــو :ســاحره ، ج :ســاحرې) (۱) سحر کوونکے۔ جادوګر۔ کوډې کوونکے۔ کوډګر۔ (۲) ښائسته ۔ چې د حُسن په سحر زړونه ځان ته راکاږي۔ (۳) پاړو۔ پاړوګر (ا ۔ق)

**ساحري:۔** (سا + حِ + ري)(اس۔مـو۔ج۔ساحرې)(۱) جادوګري۔ سحر ګري۔ کوډګري۔ (۲) منتر چلونه(۳) پاړو توب، پاړوګري (ا۔ق)

**ساحل :۔** (سا+ حِ + ل)(ع۔اس۔مذ)د سمندر کناره۔ د سمندر د اړخ زمکه۔ د درياب غاړه۔

هسې ډوب يم د ګناه په دريابونو
چې په سترګو مې ونۀ ليدۀ ساحل (رحمان)

ـــــ **ته رسېدل:۔** اص ۔د درياب غاړې ته پورې وتل۔

په درياب کښې ګډېدۀ شته ځان سنبال کړه
چــــې ډوب نــــه شې ورسېږې تر ساحله (حافظ)

**ساحه :۔** (سا+حَ)(ع۔اس۔مو۔ج : ساحې) ســـاحت مېـــدان۔ لکـــه "د اقتصاد په ساحه کښې"

**ساخت :۔** (سا+خ+ت)(اس۔مـذ ۔ج :ساختونه) (۱) جـوړ۔ ساز شـوے۔ لکـه دامريکې ساخت(۲) جوړښت۔ جوړونه۔ رغاونه۔ (۳) رنګ کړې او جوړه کړې څرمن۔ (۴) شکل و صورت۔ ډول (۵) په دروغـو يا د ځانه جوړه شوې خبره۔ بناوټي۔

**ساخت :۔** (سا+خَ+ت)(وـــــ ځابنت)

**ساختګي :۔** (سا+خ +ت+ګي) (اس۔مـو۔ج۔ساختګۍ)(۱) جوړونـه۔ سازونه۔ (۲) بناوټي۔ د ځانه جوړونه (۳) تکلف۔ ظاهرداري۔

**ساختلے**:- (سا+خ+ت+لے)(پ+ص-مذ-ج: ساختلي-مو: ساختلې) چې ساه پکښې نۀ وي-بې دمه-مړ مجازاً د وېرې له کبله پرېشانه اريان دريان او خاموشه

—— **کښېناستل**:-(۱) د ډېرې وېرې له کبله خاموشه او اريان دريان کښېناستل- (۲) په ډېر غم فکر او انديښنو کښې ډوب کښېناستل-فلانے ساختلے ناست دے لکه چې پلار ئې مړ وي-

**ساخته**:- (سا+خ+تَ) (ف-ص) جوړ شوے-ساز شوے-

—— **پرداخته** (پ+ر+دا+خ+تَ) (ف-تر-صف) (۱) اراسته کړے اوښکلے کړے-(۲) موجود-حاضر-تيار-اماده-

—— **کار**:- (اس ص) جوړونکے-سازوونکے-

—— **کاري**:-(اس) جوړونه-سازونه-

—— **خود**:-اص- د ځانه جوړه کړې خبره وغېره-

**ساخر**:- (سَا+خ+ر)(ع-اس-نا)مسخرې کوونکے-تمسخر کوونکے، خندا کوونکے (چاپوړې)

**ساخکه**:- (سا+خ+ک) (او —— ښاخکه)

**ساخولے** :- (ق)(سا+خُ+لے) (اس صف) بردبار-زغمونے

**ساخه**:- (سا+خَ) (ع-اس-مو)(۱) ډېر وېروُونکے چغه کرېږه (کريکه)(۲) افت-

**ساد** :- (سا+د) (صف-مذ-مو-ساده، ج: سادګانې)

غل بې غمه نتداره کاندي خوشحاله
په تهمت ترلے ساد درومي سر تورے

—— **کېډل**:-اص- نېک او ښۀ کېډل-شريف کېدل-

په هغۀ چې د عشق پته غلا صحيح شوه
پــه هـزار قسمه قَسمه بـه ساد نۀ شي (خوشحال)

—— **منے**(ق) (——م-نے)(پ تر-صف-مذ، مو-منه)ديندار-دیانتدار-

**سادات**:- (سا+دا+ت) (اس-ج)(۱) د سيد غلطه جمع ده-سېدان ترې مراد دي د حضرت علي رضي الله عنه او د فاطمې بي بي رضي الله عنها اولاد دے-(۲) سردار-مالک-

**سادر**:- (سا+دَ+ر)(و —— ښادر)

**سادرے** :- (سا+د+رَے)(و —— ښادرے)

**سادس** :- (سا+د+س) (عف قه)په سپږم مقام يا ځائے کښې-شپږم-

**سادګي** :- (سا+دَ+ګي) (ف-مو-ج-سادګۍ) ساده والے چې تکلف پکښې نۀ وي-ساده توب-

**سادمانس** :- (سا+د+ما+نَ+س) (اس ص-مذ) ساده بنده-

تـۀ چــې د دې دهـر د خوبانو وفا غواړې
اے خواجه محمده تۀ هر ګوره ساد مانس ئې

**سادو** :- (سا+دُو)(پ-اس-مذ-ج:ګان) (۱) د هندوانو ملنګ فقير-(۲) مجازاً بې ښې بدې سړے-ښۀ سړے چې چاته نقصان نه رسوي- (د هندی د سادهو مفعند ے)

**سادو**:- (سا+دُو)(اس-مذ-ج-سادوګان) چالاک-بکار-دوکه مار- (ق)

**سـادوخېل** :- (سـا+دو+خېل) (اس مـع) د منـت والـو ځانګـه-چـې مومـوزئ زيمسښت دي-

**ساده**:- (سا+دَ) (فپ-صف-مذ-ج-سادګان-موج:ساده ګونې) (۱) صـــفا-بې ليکه بې داغـه (لکه ساده کاغذ)(۲) چې چالاک او زيرک يا درغـل نۀ وي بوله

په يوه لحظه کښې شته بله کښې نښت وي
ارے ګورې عـــاشقان په زړۀ ساده وي (خوشحال)

(۳) بې مخ-مارد-بې ډېرې هلک-(ا-ق)(۴) خـالص نګـه-(۵) سـپين زړے-(۶) هغه زمکه چې څۀ ګياه بوټے پکښې نۀ وي-ډاګه-

—— **باده** :- اس-(۱) بالکل ساده-چې پرې څۀ ليک ګلونه انځور وغېره نۀ وي-(۲) کم عقل-صفا زړے-چې چل ول-مکر فرېب پکښې نۀ وي-(۳) هغه عبارت چې پکښې غټ غټ او ګران ټکي نۀ وي استعمال شوي-

—— **برانګ**:-(—— بَ+را+ن+ګ)(اس مذ-برانګه-ج-برانګې)(کم عقل-ناپوهه-بېهوده (ق)

—— **بګے**(—— ب+ګے) ساده باده سړے-کم عقل، شوده، چې په باريکو نۀ پوهېږي-

—— **په زړۀ**:-اص-(۱) ساده دل-داده زړے-(۲) ناپوهه چې په باريکو او چل ول نۀ پوهېږي-

کـله جنـګ د خرخشے کړې کله مهر
زۀ په زړۀ ساده حېران شم هومره نن ته (خوشحال)

—— **توب** (تو+ب) ساده والے-صفائي-کم عقلتيا-سادګي-

—— **جامه** (جا+مَ) فپ تر-مو-ج-جامې)هغه جامې چې پرې څۀ د نقش انځور نۀ وي-يا شوخ رنګ نۀ لري-عامه معمولي جامه-

——**دشت** (دَ+ش+ت) (ف تر-اس)هغـه اسمان چې ستوري نۀ لـري-فلک اطلس-

—— **دل**(د+ل)(ف تر-صف-مو-دله-ج: دلې) (۱) سپين زړے-صفا زړے-چې چل ول او مکر فرېب پکښې نۀ وي-ربښتونے او صادق سړے-(۲) کم عقل-بوله-سپېدلے-

—— **رُو**(—— رُو) (ف-تر-ص)هغه هلک چې په مخ ئې لا ږيره نۀ وي راغلې-

—— **روے** (——رُو+ے) ښکلے ښائسته-

وابه نۀ رورم نـــور مخ له ساده رويو
که د خط اره مې کښېږدي په تندي بيا (حميد)

—— **ژبه** (—— ج-ژ+بَ) (فپ-تر-مو ج-ژبې) هغـه ليـک يـا وينا چې پکښې ګران ګران ټکي وغېره نۀ وي استعمال شوي-

—— **عذار** (—— ع+زا+ر)—— زنخ (زَ+نَ+خ) (ف-تـر-صـف)يعني هلـک لوئے هلک چې په انتګو يا په زنه وښتۀ نۀ لري-يعني چې ږيره ېلانۀ وي شوې-(عوم-عذار-د عين زور سره هم وائي)

—— **کار** (کم عقل-شوده-

—— **کاري** (کم عقل توب-

—— **کاغذ**(۱) سپين کاغذ-هغه کاغذ چې څۀ ليک وغېره پرې نۀ وي- (۲) د ټام د —— لوح(ف تر-مذ-صف، مو-لوحه ج، لوحې)(۱) ســــاده زړے صفا زړے-(۲) کم عقل-شوده-پاډې-

—— **لوحي**(—— لَو+حي) (ف تر-مو-ج-حې)ساده توب-کم عقلتيا-کم عقل توب-

—— **مزاج** :-(—— م+زا+ج)(ف تر-صف-مو مزاجه، ج: مزاجې)هغه سړے چې تکليف اونمائش نۀ خوښوي-

—— **مزاجي**(—— م+زا+جي)(ساده طبعيت-تکلف او نمائش نه خوښونه-

—— **وپرکـار**(وَ+پ+ر+کـا+ر)(ف تـر-صـف)چې پـه (ظـاهر ه) ساده وي خـو پـه حقيقت کښې پوهه وي-مجازاً معشوقه شوخې، عيار معشوق-

**سادهو/ سادو**:- (سا+دُو) (ه-مذ، ج:ګان)هندو فقير-جوګي-

**سادے**:- (سا+دے)(پ-صف-مذ-ج-ي-مو-ه)ساده-نېک سړے-

**سادين**:- (سا+دي+ن)(اس-مذ-ح-سادينونه)هغه پتے چې کر کروندہ پکښې نه وي شوې-خو کر کروندې ته تيار وي-اړولے پتے-تيار شوے پتے-

ـــ **کول**:۔ پټې اړول ۔ پټې کر کرونديِ د پاره تيارول ،يوې کول۔

دوه درې ځتې غله واخلي

ځوک چې ښځه وکړي سادين (خوشحال)

ـــ **کېدل**:۔ پټې اړولې کېدل ۔ پټې کر کرونديِ ته تيارېدل۔

**ساډنګ**:۔(سا+ډ+ن+ګ)(اس ۔ مذ ۔ مو ۔ ساډنګه)ساده بې عقله ۔ کاواک ۔ بېهوده (ق)

**ساډو** :- (سا+ډو)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ګان) لاټو ۔ لاهو وهُونکې۔

**ساډه** :- (سا+ډ) (اس ۔ مو ۔ ج ۔ ساډې) (۱) لاپه ۔ ډوزه ۔ لاف ۔ (۲) بې بنياده ۔ هوائي خبره

ـــ **وهل** :۔اص لاپه وهل ۔ ډوزه ويشتل۔

**ساډې**:۔ (سا+ډ+ې) (اس ۔ مو) کم عقله ښځه ۔ سسته پسته ښځه (ق)

**سار**:۔ (سا+ر)(اس ۔ مذ) خوشخبري ۔ زېرے ۔ د خوشحالۍ پېغام شروه۔

**سار** :- (سا+ر)(ف ۔ اس)مېنا ۔ د خاروني يو قسم چې ښکلې اواز لري ۔

**سار**:- (سا+ر)(ف ۔ مذ) اوبښ (په پښتو کښې په مرکب الفاظو کښې راځي ۔ لکه ساروان)

**سار** :- (سا+ر)(لاحقه ده)پس لړ چې نورو الفاظو نه وروستو راوستے شي۔ او مختلفې معنیٰ ورکوي لکه ۔(۱) مالک خاوند لکه شرمسار ۔ (۲) کثـرت ۔ ډېروالے ۔ لکه چشمه سار ۔(۳) مانند ۔ په شان لکه خاکسار ۔(۴) ځا ئے لکه ، نمک سار ۔ (۵) سر لکه ناګونسار۔

**سار**:- (سا+ر) (و ۔ څار)

**سار**:- (سا+ر) (لهجه ، و سر)

**سـارا**:- (ف۔لاحقه)لاحقـه ده ۔ د خـالص پـه معنـیٰ کښـې استعمالېږي ۔ لکـه عنبرسارا۔

**سارا** :- (سا+را) (اس ۔ مو ، ج ۔ ګانې ) (۱) صحرا ۔ بېديا ۔ ميره۔(سارا ، د صحرا بدل شکل دے)(۲) مجازاً ۔ کلے ۔ باندہ د ښـاريو نه لرې ورې ابادي ۔ (ق)

ـــ **شين**:۔ (ــــ ش+ن) (صـف تـر ۔ مـو ۔ ه) صـحرا نشـين ۔پـه صـحرا کښـې اوسېدونکے يا پاتې کېدونکے ۔ په بېديا کښې استوږن۔

ـــ **ګشت**:۔(ــــ ګ+ش+ت) په صحرا کښې ګرځېدنه ۔ بېديا ته تلنه۔

ـــ **تـه تلـل**:۔ (۱) صحرا کښې ګرځېدلو لـه تلـل ۔ بېـديا تـه د ګشـت د پـاره تلل۔(۲) د رفع حاجت د پاره تلل۔

**ساراسين** :-(سا+را+س+ن)(رنګ ۔ اس مع)عرب سړے ۔ مسلمان۔

**ساراشين** :-(سا+را+شي+ن) (اس ۔ مـذ ۔ مـو :شـينه ۔ ج ۔ شـينې)مالداره ۔ کوچے ۔ (ق)

**سارانے** :- (سا+را+نے) (صف ۔ ج ۔ سارانيِ ۔ مو ۔ سارانۍ) (۱) پـه صـحرا کښـې اوسېدونکے ۔صحرائي ۔ کلي وال ۔ باندہ چي۔ (۲) د صـحرا يـا مېـرې سره تعلق لرونکے ۔ لکه ساراني ګلو نه۔

**سارائي** :-(سا+را+ئي)(صف)(۱) صحرا سره تعلق لرونکے ۔(۲) پـه صـحرا کښـې اوسېدونکے ۔ ساراانشين۔(۳) په صحرا کښې پيدا کېدونکے۔

**سارائي** :- (سا+را+ئي) (صف)(۱) سارا(صحرا) سره تعلق لرونکے ۔صـحرائي ۔ د مېرې مېرائيز۔(۲) د کلو اوسېدونکے ۔ کليوال (ق)

ـــ **چرګ**:۔ (چ+ر+ګ) (اس ۔ مـذ ، ج ۔ چرګـان يـو صـحرائي يـا غرئيـز سـور رنګ چرګ چې ښکلې اواز لري۔ (ق)

**ساربان** :- (سا+ر+با+ن )(اس ۔ مذ ۔ مو :نه)(و ـــ ساروان)

**ساربانی**:-(سا+ر+با+ني)(وـــ ساروانی)

**سارټي في کېټ** :-(سا+ر+ټي+في+کې+ټ)سرټيفيکېټ ۔

**سارجنټ** :-(سا+ر+ج+ن +ټ)(انګ ۔ مذ ۔ ح ۔ آن)په فوج کښې يـو عهـده يـو فوجي افسر۔

**سارخان** :- (سا+ر+خا+ن)(اس مع)د نبـک زام يـوه وړه ځانګـه ۔ چې د تورسپر "ګلیٔ" ادم خېل افريدي دي ۔

**سارخکه** :- (سا+خ+ک)(وـــ ځارښکه)

**سارخېل** :- (سا+ر+خېل)(اس مع)د مکي خېلو يوه ځانګه دهچې (ګتيـه خېـل ، حسن خېل ، متياخان خېل، کوکي خېل)افريدي دي۔

**سارډين** :-(سا+ر+ډي+ن )(انګ ۔ اس ۔ مذ) يو قسم وړوکے خوږ د غوښې کب چې عموماً (پوخ) په ډبو کښې بند ساتلے شي۔

**سـارق** :- (سـا+ر+ق) (ع ۔ اس ۔ مـذ ۔ مـو ۔ سارقه)سـرقه کـوونکے ۔ غـل ۔ غلا کوونکے ۔

**سارقي** :-(سا+ر+قي)(عپ)د سرقے کولو کار ۔ غلا۔

**سارک** :- (سا+رَ+ک)(اس ۔ مذ)سر تخم (ق)

**سـارک** :- (سـا+ر+ک)(ف ۔ اس ۔ مـذ)مېنا مشـهوره خوش اوازه مرغـۍ ځينې وخت بلبل ته هم وائي۔

**سـارکه** :- (سا+ر+ک)(اس ۔ مـو ، ج ـــکې)اره ټکـه (کـنې) سـاڅ ۔ تبـې يـوه مشهوره مرغۍ چې په فارسۍ کښې ورته کنجشک خوره وائي۔

**سارګا** :-(سا+ر+ګا)(اس ۔ مو)د چت چچه (ق)

**سارل** :- (سا+ر+ل)(و ـــ ځارل)

**سارلے** :- (سا+ر+لے) (وـــ ځارلے)

**سارمکې** :-(سا+ر+م+ک+ې)(اس ۔ مو) سـبزي ده چـې خلـق ئـې پخـوي۔ تاندوره ۔ سرګلے ۔ چيلو۔

**سارمکے** :-(سا+ر+م+کے)(وـــ سارمے)

**سارمه** :- (سا+ر+م)(اس ۔ مو) يو قسم سبزي ۔ سارمے۔

**سارمه** :- (سا+ر+م) (وـــ سارمے)

**سارمے** :- (سا+ر+م+ے)(اس ۔ مو)يو قسم سبزي ۔ (ق)

**سارمے** :- (سا+ر+مے)شمکے+ يو قسم ساګ دے۔

**سارنتون** :- (سا+ر+ ن +تُو+ن)(وـــ ځارنتون)

**سارند** :- (سا+ر+ن+د)(وـــ ځارند)

**سارندچي** :- (سا+ر+ن+د+چي) (اس ص ۔ مذ)(وـــ سارنده نواز)

**سارندوے** :-(سا+ر+ن+دُو+يے)(وـــ ځارندوے)

**سارنده** :-(سا+رَ+ن+دَ)(ه ۔ مذ ۔ ج ۔ سارنديے)سرينده ۔ مشهور ساز۔

**سـارنګ زئـي** :- (سـا+ر+ن+ګ+ز+ئ)(اس مـع)د هـارون خېلـو ښـاخ دے چـې سناتيا کـاکړ دي۔د سرنګزو لـوې ځـانګې دادي:ابراهيم زئ،ادين خېل او تيمر۔

**سارنګه** :-(سا+ر+ن+ګ)(اس ۔مو ۔ج ۔ سارنګې) د سـارنګ قبيلـې جينـۍ يـا ښځه

**سارنګۍ**:- (سا+ر+ن+ګ+ۍ)(اس ۔ مو)چوغکه۔

**سـارو** :- (سا+رُو)(اس ۔مـذ)چارو هغـه مسـاله چې د چونې او ايـرو وغېـره نـه جوړولے شي ۔ او د "حمام" حوض مخ پـرې ليـولے شي ۔ د قندهار په لهجه کښې ورته شوته وائي (ق) چونه چې ايرو سره ګډه کړے شي۔ (د مـــاروچ بدل شکل دے)

ـــ **کول** :۔اص ۔ چارو کول ۔ مساله لګول ۔

ـــ **کېدل**:۔اص ۔چارو کېدل ۔ مساله لګولے کېدل۔

**سارنه** :- (سا+رَ+نَ) (وـــ ځارنه)

**ساروالے** :(سا+ر+وا+لے)(وـــ ځاروالے)

**ساروان** :- (سا+ر+وا+ن)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ :ن) (ساربان د اوښانو سـاتونکے يـا څروونکے۔ اوښه۔(سار اوښ ته وائي۔

**ساروانی** :- (سا+ر+وا+ني) (اس) د سـاربانۍ کـار د اوښـانو سـاتنه يـا څرونه

وغېره اوښباني.

**ساروک** :- (سا+ر+وک)(ف ـ اس ـ مذ) (وـــ سالک)

**سارونکې**:- (سا+رُو+ن+کې)(وـــ ځارونکې)

**سارو‌ې** :-(سا+ر+و‌ې)(وـــ ځارو‌ې)

**سارۀ** :- (سا+ر+ه)(پ ـ اِس ج)د سور د پاره استعمالېږي ـ لکه ـ دا کپړه په سارۀ درې ګزه ده یعني ددې کپړې پلنوالې درې ګزه دې.

**ساره/سارا** :- (سا+رَ) (اس مع)د حضرت یعقوب علیه السلام تېر ـ د حضرت اسحٰق علیه السلام مور.

**ساره** :- (سا+رَ)(وـــ ځاره)

**ساره** :- (سا+رَ)(وـــ سارا)

**سارې** :- (سا+رې) (اس ـ مذ ـ مو : ساری)(۱) ثاني ـ همسر ـ عدیل(۲) یو شان لکه دا دوه هلکان ساري دي یعني یو شان دي ـ (ظ)

ـــ **نه لرل** :ـ اص ـ(۱) ثاني نه لرل ـ هغه سړې چې د مقابلې ئې څوک نۀ وي ـ بې عدیله.

**سارې** :- (سا+رې) (وـــ ځارې)

**ساري** :- (سا+ري)(ه ـ صف) ټول ـ همه ـ کُل ـ(دا د اردو یا هندی ژبې لفظ دې په پښتو کښې ئې استعمال نشته.

لـــم یلـــد ولـم یـولـد احمد صمد ئې

تۀ بادشاه ئې مخلوقات دې کل ساري ستا (عظیم)

**ساري** :- (سا+ري)(پ ـ ص)همسر ـ برابر.

ـــ **توب**:ـ (ـــ تو+ب) (همسري ـ برابرې.

**ساري** :- (سا+ري)(ع ـ صف)(۱) سرایت کوونکې ـ (۲) د یو نه بل ته لګېدونکې (لکه ساري یا ساریه مرضونه ـ متعدي مرضونه)

ـــ **شفاخانه**:ـ اِص ـ سفري شفاخانه چې د یو ځائې نه بل ځائې ته ګرځولې شي.

ـــ **مرضونه**:ـ (اس ص)د یو نه بل ته لګېدونکي مرضونه ـ

**ساري** :- (سا+ري)

**سوري** :- (سا+ري)(رنګ ـ کلمه تاسف)د معافی غوښتلو یا د افسوس کولو په موقع وئیلې شي ـ افسوس دې معافي غواړم ـ(چې د چانه څۀ غلطي یا خطائي وشي نو خپلې خواشیني یا افسوس د ښکارندولو د پاره وائي.

**سارینده**:- (سا+ري+ن+دَ) (اس ـ مو ـ ج ـ ساریندې)د یو مشهور ساز نوم دې ـ سرینده: د مشهور ساز سارنګی په شان یو ساز دې ـ چې تارونه لري ـ او په لینده غږولې شي.

ـــ **نواز**:ـ (نَ+وا+ز) هغه سړې چې د ساریندې په غږولو کښې مهارت لري ـ

**ساریه**:- (سا+ري+ه)(ع ـ صف)(وـ ساري)(اس ـ مذ)(۱) هغه تمباکو چې د چیلم د څښـکلو نـه پـس پـه تـوپـی کښـې سـوځـېدلې ایـرې پـاتې شـي (۲) سـوځـېدلې ـ سـوې ـ اصلاً دا لفـظ د هنـد کو د سـاړ ، سـړنا ( سوځېدل) نه اخستې شوې دې.

**ساړتې**:- (سا+را+تې)(لهجه ـ و ـ سړې)

**ساړه**:- (سا+ړَ)(اس ـ مو ـ ج ـ ساړې)پرې ـ مزې(ق)

**ساړه** :- (سا+ړ)(صف)له جنګه پاتې شوې یا مانده شوې ـ (ق)

**ساړۀ**:- (سا+ړ)(اس ـ جمع)(۱) یخني ـ سړدي ـ سړزي ـ (لکه ـ نن ډېر ساړۀ دې )(۲) د یخنۍ موسم ـ ژمې ـ جمې ـ(۳) (صف) د سوړ جمع ـ لکه ساړۀ اهونه ـ (مو) سړه : ج سړې لکه سړې اُوبۀ.

ـــ **تاودۀ**:ـ (ـــ تا+ؤ+د) یخ او ګرم ـ مجازاً ښۀ او بد حالت هر قسم حالات لکه د ژوند ساړۀ او تـاودۀ ئې لیدلي دي ـ یعني هر قسم حالات (ارام او مصیبتونه) ورپېښ شوي دي.

ـــ **تودۀ**:ـ اص ـ یو قسم خوراک چې د اوبو او غوړونه تیارولې شي.

ـــ **خوړل**:ـ د غُصې او ګرمۍ په ځائې په سړه سینه غور کول ګرمي او غُصه نۀ کول

ـــ **سوې**:ـ (ـــ س+و‌ې) یخ سوخته ـ یخ سوځېدلې ـ (ق) ساړۀ سوې.

ـــ **دسترګو**:ـ چې سترګې پرې یخېږي ـ چې سړې پرې خوشحاله شي ـ

**ساړې** :- (سا+ړې) (وـــ ځاړې)

**ساړې** :- (لهجه ـ و ـ سړې)

**ساړي** :-(سا+ړي)(ه ـ مو ـ ج ـ ګانې یا یانې)د ښځو یو جامه ـ یو پلن او یو څو ګزه اوږد ټوکې دې ـ چې څۀ برخه ئې د معدنه (لکه د لنګ چاپېره کړي ـ او څۀ برخه ئې د بره بدن او سر نه چاپېره کړي.

ـــ **پن**:ـ (ـــ پ+ن) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د زنانۀ د یو کـالي نوم دې چې ساړي پرې نښلولې شي.

**ساز**:- (سا+ز)(ف ـ لاحقه) لاحوقه ده ـ د نورو الفاظونه وروستو راځي ـ او د جوړوونکي معنٰی ورکوي ـ لکه زین ساز ـ ګړي ساز.

**ساز** :-(سا+ز)(اس ـ مذ ـ ج سازونه)(۱) د موسیقۍ الـه(۲) د موسیقۍ د الې یا د الاتو (په ګډه) غږېدنه(۳) داسن کاټي قیضې وغېره ـ (۴) تیـار ـ امـاده ـ (نن کارته ساز نۀ یم)

**ساز**:- (سا+ز)(ف ـ صف ـ مذ)موافق ـ مطابق ـ هم رنګ.

**ساز** :- (سا+ز)(اس ـ مذ) بدل ـ قصاص.

**ساز** :- (ف ـ صف ـ مذ) جوړ ـ روغ ـ (نن مې طبعیت ناسازه دې)

ـــ باز(۱) زېب و زینت ـ ارائش ـ(۲) پټ راز ـ پټه صلاح مشوره ـ سازش ـ

یاران لري زرګونه د هر چا سره ساز باز کا

په قول په وعده ځکه تېرېږوي شائستونه (خوشحال)

(۳) درز دروز ـ ډنګه ډونګ ـ لکه فلانی ئې په ساز باز وادۀ کړې وه

ـــ **غږول**:ـ امر (۱) د موسیقۍ کومـه الـه غـږول ـ (۲) د موسیقۍ مختلف الات (په ګډه)غږول.

ـــ **غږېدل**:ـ اِص (۱) د موسیقۍ کومه اله غږېدل ـ (۲) د موسـیقۍ ګڼلـې الې (په ګډه) په سُر غږېدل.

ـــ **غوښتل**:ـ اِص ـ بدل غوښتل ـ قصاص غوښتل ـ

ـــ **کول**:ـ جوړېدل ـ سمون خوړل ـ لکـه زمانـه درسره سازنه کـوي نـو تـۀ ورسره وکړه.

ـــ **کښېښـودل**:ـ اِص ـ پـه اس یـا (خر) دپاسـه د جـوت کولـو دپـاره اسـباب کښېښودل ـ

ـــ **ګـار**:ـ (ګـا+ر) ف ـ تـر ـ صـف موافـق ـ سـم ـ سـمون ـ خـوړونکې ـ مناسـبت (حالات سازګار نۀ دي)

ـــ **ګـاري**:ـ (ګـا+ري) موافقت (پـه مـزاج یـا پـه څۀ کـار کښـې یـو شـان والـې ـ جوړښت.

ـــ **مند**:ـ (ـــ+م+ن+د)جوړ ـ ساز ـ اراسته. (اـــ ق)

ـــ **ناسازه**:ـ اِص ، ارام او تکلیف ـ ښۀ او بد ـ پېښنه یا خبره.

ـــ (نۀ) **راتلل**:ـ جوړ نۀ راتلل ـ سمون نۀ خوړل ـ برابرې نه راتلل.

ـــ **وار**:ـ (ـــ+وا+ر)(۱) ناقص العقل ـ چې عقل ئې کم وي ـ (ق)
(۲) مناسب حده پوري ـ متوسط درمیانه ـ (ظ)

ـــ **واري**:ـ (ـــوا+ري) موافقت ـ جوړښت ـ جوړه جاړه ـ (اـــق)

ـــ **وسامان**:ـ (سا+زو+سا+ما+ن)(ف تر ـ مذکر) (۱) د کـور اسـباب و سـامان ـ (۲) لوازمات ـ ضروریات.

ـــ **وهل**:ـ ساز غږول.

ـــ **دم** :ـ اِص ـ دوست ـ ملګرې ـ هم خیاله.

ـــــ **سره**:۔ (سَ+ رَ)یو بل سره جوړ۔ یو بل سره موافق۔

ـــــ **کار**:۔اص۔ کار جوړوُونکے۔ حاجت پوره کوونکے۔

ـــــ **سازش**:۔ (سا+ز+ش) (ف۔اس۔مذ۔ج :سازشونه)ساز باز۔پټه صلاح مشوره د چا خلاف پټه منصوبه۔

**کار**:۔(کا+ر) سازش کوونکے۔د چا خلاف منصوبه جوړوُونکے۔

**سازشي**:۔ (سا+ز+شي)(فپ اس۔مذ۔ج۔سازشیان) سازش کوُونکے۔د چا خلاف په ګډه منصوبه جوړوُونکے۔

**سازښت**:۔(سـا+ز+خ+/ش+ت)(اس۔مـذ۔ج۔ونـه)(۱) جوړونـه۔سـازونه۔ تیارونه۔(۲) سازش۔

**سازو**:۔ (سا+زُو)(ف۔اس۔مذ)(۱) هغه پړے چې غلو سره وي چې د خلقو مرۍ پرې خپه کوي اووژني۔(۲) هغه رسۍ چې غلهٔ پرې خپه کولے او وژلے شي۔

**سازو**:۔ (سا+زُو)(اس۔صف)سمیال۔اراسته۔

**سازوار**:۔ (سا+ز+وا+ر)(اس۔مذ۔مو۔سازواره)(۱) درمیانه(۲) هـم شـکل (۳)کم عقل

**سازول**:۔ (سا+ز+و+ل)(پ مص) جوړول۔تیارول۔

**سازونګ**:۔(سا+ز+و+ن+ګ) (وــــ سازونه)

**سازونه**:۔ (سا+ز+و+ن)(حمص)(۱) تیارونه ۔جوړونه(۲) سنبالونه۔ارائش۔

**سازونکے**:۔(سا+ز+وُ+ن+کے)(نا۔مذ۔ج۔کي)جوړوونکے۔تیاروونکے۔

**سازي**:۔(سا+زي+)(حمص)(سازونه۔موافقت۔سازش۔

ـــــ **کول**:۔اص موافقت کول۔سازش۔(ق)

**سازي**:۔ (سا+زي) (لاحقه) د فارسي لاحقه ده۔نورو الفاظو نه وروستو راځي۔ او د جوړونې معنٰی ورکوي۔ لکه طیاره سازي۔

**سازېدل**:۔ (سا+زې+د+ل) (مص)(۱) جوړېدل۔تیارېدل۔(۲) موافق کېدل۔راځے برابرېدل۔

ـــــ **واره**:۔اص ۔موقع بیا موندل۔لاس برکېدل۔

**سازېدنګ**:۔ (سا+زے+د+ن+ګ)(حمص) (وــــ سازېدهٔ)

**سازېدنه**:۔ (سا+زې+د+نَ)(حمص)(۱) جوړېدنه۔تیارېدنه (۲) سنبالېدنه۔ارائش کونه(۳) جوړ راتلنه۔موافقت پیدا کېدنه۔

**سـازېدُنکے**:۔ (سـا+زې+دُو+ن+کے) (پ۔مـے۔مـذ۔ج۔سـازېدُونکي)(مو۔سازېدُونکې) جوړېدونکے۔برابرېدُونکے۔

**سازېدهٔ**:۔ (سا+زې+د)(حمص)(۱) تیارېدهٔ۔جوړېدهٔ (۲) ارائـش کـول۔ نبالېدنه (۳) موافقت راتلهٔ۔

**ساسان**:۔ (سا+سا+ن) (اس۔مع)د اسفندیار نوسے او د بهیمن زوے ؤ۔ویلے شي چې دخپلې خور یمارخت د وېرې چې د زردشتي مذهب د شریعت تر لاندې دخپل پلار په نکاح کښې وه ، فقیر شوے ؤ۔ددهٔ اولاد د ساساني باچاهانو په قوم یادېږي۔(وــــ ساساني)

**ساساني**:۔ (سا+سا+ني)(اس ۔مع) د ایران باچاهانو د یو مشهور خاندان نوم د ساسـان پـه اولاد کښـې او د شـیرین یابـک ددې شـاهي خانـدان بنیـاد کښېښنود۔چې د ۲۲۶ء نه واخلې تر ۶۵۱ء پورې ئې بادشاهي وکړه۔د بهرام شهزاده قصې هیروهم په دې خاندان کښې ؤ۔مشهور انصاف پسنده باچا نوشېروان هم په دې خاندان کښې تېر شوے دے۔چې نوم ئې په متلونو کښې یادېږي۔اخري باچاې یزدګرد (یامزدجر)ثالث ؤ۔چې د مسلمانانو د لاسه په کال ۶۴۵ ء کښې ئې ماتے اوخوړ۔او بیا د خپل یو امیر د لاسه اووژلے شو۔

**ساسکوټے**:۔ (سا+س+کو+ټے)(وــــ ځاځکوټے)

**ساسکے**:۔ (سا+س+کے)(وــــځاځکے)

**ساسوکے /ځاځوکے**:۔(سا+سو+کے)(وــــځاځوکے)

**ساطر**:۔ (سا+ط+ر)(ع۔اس فا) قصاب۔

**ساطع**:۔ (سا+ط+ع)(ع۔صف۔مو :ساطعه) اوچت۔صفا۔روښانه۔

**ساطور**:۔ (سا+طُو+ر) (ع۔مذ) یو قسم لویـه چاړهٔ۔لوئے خنجر۔د قصابانو چاړه۔

**ساعات**:۔ (سا+عا+ت)(ع۔اس) د "ساعت" جمع ده۔ وــــ ساعت۔

**ساعت**:۔ (سـا+ع+ت) (ف۔اس۔مذ۔ج۔ساعتونه)(۱) ګړۍ۔شېبه۔لږ شان وخت

یـــــا صبا دے یـا غرمه یا نمازپېښین دے
نمازدیګر د ښکار تکل کړم ساعت لنډ دے (خوشحال)

(۲) ګړۍ د وخت د ښئیلو الـه(پـه پښتو کښې دا لفظ عموماً "سات"په شکل او اواز کښې استعمالېږي۔خو په اصل صورت کښې ئې هم استعمال روان دے)

ـــــ **پرې نهٔ تیرېږي**:۔اص۔صبر نه شي کولے۔ډېر بې صبره دے

ـــــ **په ساعت**:۔اص۔وخت په وخت۔ګړۍ په ګړۍ۔هـره ګړۍ یا شېبه پس بیا بیا۔

ـــــ **تېرول**:۔اص۔وخت تېرول۔وخت اړول۔(عموماً سخت ژوند په موقع وئیلے شي۔

ـــــ **دے تېرېږي**:۔اص۔وخت تېرېدونکے ځیـز دے ځکه تېرېږي۔د سخت ژوند پـه موقع ویلے شي۔ژوند دے تېرېږي۔ښهٔ دے کـه بـد دے وخت اوړي۔

ـــــ **ساز**:۔اص۔ګړي ساز۔دګړو (د وخت ښئیلو اله)مرمت کوونکے۔

ـــــ **شپېې له**:۔اص۔ وــــ په ساعت ګړۍ کښې۔

ـــــ **په ګړۍ کښې**:۔اص۔پـه لږ وخت کښې پـه لنډ وخت کښې۔پـه یـوه ګړۍ قدرې وخت کښې۔

ـــــ **د ګړۍ دے**:۔اص۔مرګوني حال دے۔ساعت ګړۍ کښې به مړ شي۔پـه لږ شان وخت کښې مړ کېدونکے دے۔ (ع۔اس۔مذ۔ج۔ساعدونه)

**ساعد**:۔(سا+ع+د) (۱) لیچـه۔د څنګل نه واخلئ د ګوتو تر سره پورې لاس۔ (۲) د مرغو شهپر۔

**ساعي**:۔(سا+عي)(اس۔فاع)(۱) سعي کوونکے۔کوښښ کوونکے۔منډې(ترنډې) وهـونکے۔(۲) خـواري کښ۔زیارمنـد۔(ا۔ق)(۳) د عیسـایانو او یهودیـانو سردار۔

ـــــ **بلفساد**:۔اص۔د فساد او ګړ بړ پیدا کولو د پاره منډې وهونکے۔

ـــــ **ساغر**:۔ (سا+غ+ر)(ف۔مذ۔ج : ساغرونه) پیاله۔جام۔عماماً د شرابو پیاله

**یا جام ـــــ وهل /څښکل**:۔اص۔ شراب څښکل۔

**ساغجم**:۔ (سا+غ+ر+ج+م)(ف تر۔مذ)جام جم۔د جمشېد باچا جام۔مشهوره ده چې دغه جام کښې به جمشېد باچا ته د دنیا هر ځیز ښکارېدهٔ۔

**ساغرصهبا**:۔(سا+غ+ر+ص+ه+با)(ف۔تر۔مذ) د سرو شرابو جام۔

**سـاغرکش**:۔(ــــک+ش)(اس۔فـا۔ج۔ان) سـاغر راښـکونکے۔مجـازاً شـراب څښکونکے۔شرابخور۔شرابي۔

**ساغری**:۔ (سا+غَ+رَ+یٔ)(ق۔اس۔مو)هغه نقش چې د دربـو ګوتـو هـومره پلن وي۔او د (غلے وغېره) بوجیا نورو داسي ځیزونو په غاړه جوړولے یا اودلے شي۔

**ساغرئی**:۔ (سا+غ+رَ+یٔ)(اس۔مو) د ځناورو کناټے۔

**ساغرے**:۔(سا+غ+رے)(اس۔مذ۔ج ساغري) د ځاروي کناټے۔

**ساغرے**:۔ (سا+غ+رَے)(اس۔مذ۔ج۔ــــي) د کبانو یا د نهنګ وغېره څرمن چې د تورې په موټے یا تېکې لګولے شي۔

**سـاغرے/سـاغورے**:۔ (سـا+غو+رے) (اس۔مـع۔مـذ۔ج :سـاغوري ،

مو :ساغوري)د خټکو د يو مشهور ے قبيلے نوم۔

شاهي بېگ ساغرے په تن ملک بـــــر ے وو
تـــــر شيـــــدا اول د دهٔ رکـــي کـــارتـــــه (خوشحال)

**ساغري** :-(سا+غ+ري) (اس ـ مـع) د بولاقـو خټکـو يـو قبيلـه ده ـ ددې قبيلـې ښاخونه دادي : مکوړي ـ نړه گلي ـ روزي ـ بنگي خېل ـ شان ـ

**سافر** :- (سا+ف+ر)(ع ـ اس ـ فا ـ مذ) (۱) سفر کوونکے ـ هغه فرښته ـ(۲) چې د ادم اعمال ليکي۔(۳) قاصد۔

**سافل** :- (سا+ف+ل) (ع ـ اس ـ صف ـ مذ ـ ج ـ ان ـ اوسافلين ـ مو :سافله ،ج ـ سافلې)ښکته ـ لاندې ـ د ښکته درجې ـ کمينه ـ

**ساق** :- (سا +ق) ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ساقونه)(۱) پنډۍ ـ د پښتو د گيټو نه بره تر زنگونه پورې حصه پرکې۔(۲) د ونې تنه ـ (ساق الشّجَرَ)(۳) د بوټي اوږد ډانډ ے ـ

**ـــــ دوش**:-(ـــــ دُو+ش)(عف ـ تر ـ اس مذ) په وادهٔ کښې هغه ځلمے ـ چې د وادهٔ د ځلمي خاص ملگرے يا دوست وي ـ په فارسي کښې ورته "شاه بالا" هم وائي۔

**ـــــ عروس/عروسان**:-(ع+رُو+س/سا+ن)(ف ـ تر ـ اس مذ)د يو قسم متيائي نوم د ے۔

**ســاقري**:- (ســا+ق+ري)(ف ـ اس ـ مـو)د بخملـو د قسـم يـوه ربښـمينه کپـړه کېمخت۔

**ساقط** :- (سا+ق+ط)(ع ـ مذ ـ مو :ساقطه ـ ج ـ ساقطې)(۱) غورځولے شو ے ـ ترک کړ ے شو ے ـ غورځېده ـ(۲) حکم قرارداد وغېره چې لـه عملـه وغورځېږي ـ او عمل پرې نهٔ کېږي ـ (۳) بې کاره ـ

**ـــــ کـول**:ـ اصـ (۱) غورځـول ، لـه مينځـه ايسـتل تـرک کـول ، پرېښـودل۔ (۲) شعر د خپل بحر د وزن نه غورځول بې وزنه کول۔(۳) نا منظوره کول۔

**ـــــ کېدل**:ـ اصـ (۱) غورځېدل ، ترک کېدل ـ (۲) ورکېدل ـ گُم کېدل ـ (۳) د شـعر د خپـل بحـر د وزن نـه غورځېـدل بـې وزنـه کېـدل۔ (۴) لـه عملـه غورځېـدل ـ لـه عملـه وتـل ـ منسـوخ کېـدل (لکه:دغـه زوړ حکـم او سـاقط شـو ے د ے )

**ـــــ له حکمه کېدل**:ـاصـ د عمل قابل نهٔ کېدل ـ

**ساقطول**:- (سا+ق+ط+و+ل) (مـص) ساقط کـول ـ لـه استعمال نـه غورځـول ، منسوخه ول۔

**ســاقطول**:- (ســا+قِ+طَ+و+ل) (مـص) (۱) سـاقط کـول ـ غورځـول ، تـرک کـول۔ (۲) د (شعر ) د وزن يا بحر نه غورځول ـ

**ســاقطېدل** :- (ســا+قِ+طې+د+ل) (مـص) (۱) سـاقط کېـدل ـ اسـقاط کېـدل۔ غورځېـدل۔ (۲) زائـل کېـدل ، ورکېـدل۔(۳) د (شـعر) د وزن يـا بحـر نـه غورځېدل۔

**ساقنه**:- (سا+ق+ن+ړ+ن)(اس ـ مو ـ ج ـ ړې)د ساقي تانيث ـ (وـــــ ساقي)

**ساقه** :-(سا+قَ (ع ـ اس ـ مو) (۱) د لښـکر هغـه حصـه چې د اصـل لښـکر نـه وروستو ځي ـ د فوځ وروستنۍ حصه ـ (۲) د بوټي ډانډ ے۔

**ساقي**:- (سا+قي) (اس ـ مذ ـ ج : ساقيان ج ـ مو: ساقيانې) (۱) څښـکوونکے او بيا خصوصاً د شرابو څښکه وونکے ـ (چې عموماً ښکلے هلک يا پېغله به وه) (۲) مجازاً معشوق ـ محبوب۔(۳) د چيلم څښکوونکے۔

**ساقي ازل**:-(سا+ق+ي+ا+ز+ل)(عف تر ـ مذ) د ازل د ورځې څښـکونکے خدا ئے پاک جل جلاله ـ

**ساقي شب**:- (سا+قي+ي+ش+ب) (عف تر ـ اس مذ) د شپې د وخت څښـکونکے۔ کنايـه: سـپوږمۍ۔ لاړ ښـوونکي او د زوړ اسـتاد پـه معنٰـی کښـې هـم (استعمالېږي)

**ساقي کوثر**:-(سا+ق+ي+کو+ث+ر)(عف تر ـ اس ـ مذ)(۱) د کوثر څښـکونکے ـ مراد ترې حضرت محمد مصطفٰی عليه السلام د ے ـ(۲) حضرت علي رضي الله عنه ته هم وئيلے شي۔

**ـــــ گـر**:(گ+ر)(عـف تـر ـ اس ـ مـذ ، ج ـ ان ، مـو:گره)(ج ـ گرې)ســاقي ـ څښکونکے۔

**ـــــ گري**:ـ (گ+ري)(اس ـ مـو ـ ج ـــ گـرې)د سـاقي کـار ـ د څښــکولوکار ـ (عموماً د شرابو د څښکولو کار)

**ساگ**:- (سا+ک)(ق ـ اس ـ مذ ،ج ـ ساکونه)ساگ ـ مشهوره سبزي۔

**ساک**:- (سا+ک) (صف)صفا ـ پاک ـ (عموماً پاک سره يو ځا ئے راځي)

**ـــــ پاک**:ـ (پا+ک) (صف مذ ـ مو: ساکه پاکه)بالکل پاک ـ صفا او پاکيزه ـ (عموماً پاک ساک وائي)

**ساکا**:- (سا+کا) (اس مع)د پخواني قام نوم ـ چې تقريباً ۱۴۰ او ۱۳۰ قبل مسيح تر مينځه وخت کښې ئې په هند حمله کړې وه بيا هم دلته مېشته شول۔

**ساکاخېل**:-(سا+کا+خېل) (اس مع) د سيلمکيو ځانگه ده چې (دخلي خېل ، د شمن خېل)محسود دي ـ

**ساکپ**:- (سا+ک+پ)(اس ـ صف ـ مو ساکپه) تش لاسے ـ بې کاره او بې حاصله سړ ے

**ساکت** :- (سا+ک+ت)(ع ـ فا ـ مو، ساکته ، ج :ساکتې)(۱) چپ غلے ـ خاموشه ـ پټ خولے۔

په نوروز کښې دا غزل واخله مطربـــه
پـــــه اواز بــــه د بـــلبلې شي ساکتې (خوشحال)

(۲) بغېر د څهٔ حرکته ـ بې حسه او بې حرکته ـ

**ـــــ اوسېدل**:ـ اصـ (وــــ ساکت پاتې کېدل)

**ـــــ کول**:ـ اصـ (۱) د حرکت نه پاتې کول ـ بې حرکتـه کـول ـ (۲) غلے کول ـ چپ کول ـ (۳) په بحث کښې پاتې راوستل۔

**ـــــ کېدل**:ـ اصـ (۱) د حرکته پاتې کېدل ـ (۲) غلے کېدل ـ چپ کېدل ـ (۳) په بحث کښې پاتې راتلل ـ

**ساکټ** :- (سا+ک+ټ)(انگ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغـه سُورے يـا د سُوري پـه شان ځا ئے چې بل څيز پکښې پوره پوره کښېښودے شي۔خانه ـ کوغالے۔

**ساکړۍ يا سکړۍ** :- (س+ک+ړ+ۍ) (اس مع) د علي خېلو يو ښاخ دے چې د اورکزو همسائي قبيله دي بيا د ساکړو ځانگې دا دي ـ ملک نمسي شاهو نمسي ـ او پلوي نمسي ـ

**ساکښ**:-(سا+ک+خ+ښ)(اس ـ صف ـ مذ ـ ج ـ ان مو ـ ه)ساه اخسـتونکے ـ ذي روح ځناور ـ جاندار ـ ژو ے(جو ے) زنده سر ے ـ

**ساکن** :- (سا+ک+ن)(ع ـ فا ـ مذ ـ مو ـ ساکنه ـ ج:ساکنې)(۱) ولاړ چې حرکت نهٔ کوي ـ دربـدلے ـ اودربـدلے ـ (۲) اوسـېدونکے ـ اسـتوگنه لـرونکے ـ مېشـت ـ سکونت لرونکے۔

چـــــې ساکـــن د چشتيانو د سرير د ے
شيخ حضرت عبدالرحيم زمونږه پير د ے (خواجه محمد بنگش)

(۳) هغه تورے چې د پاسه پرې غړوند ے (د سکون علامت)وي ـ

**ـــــ کېدل**:ـ(۱) بې حسرو حرکت کېدل ـ اوربـدل ـ (۲) اسـتوږن کېـدل ـ اسـتوږنه نيول۔

**ـــــ والے**:- (وا+لے)(صف)سکون ـ بې حس و حرکت کېدنه ـ حرکت نه کونه

**ساکنان** :-(سا+ک+نا+ن)(ف ـ اس ـ مذ ـ ج ـ مو ـ ساکنانې) اوسېدونکي۔

**ساکنان گردون** :- (سا+ک+نا+ن+گ+ر+دُو+ن) (ف تـــــر ـ اس)(۱) د اســـمان اوسېدونکي ـ (۲) مجازاً د اسمان ستورې۔(۳) فرښتې۔

**ساکے**:- (سا+کے) (پ ق ـ اس ـ مذ) د هغه موسم اولې ورځې چې د گلاب گل

پکښې غوړېږي.

**ساکیه مني** :-(سا+کي+ې+مُ+ني)(اس مع) د ګوتم بُده د خاندان نوم. د ګوتم بده نوم.

**ساګ**:-(سا+ګ)(اس. مذ. ج. ساګونه)مشهوره سبزي ډېر قسمونه لري. چې تشې پاڼې ئې پخولې شي.

— **دال**:.اص(۱) غریبانه خوراک.(۲) د کسر نفسۍ د پاره ښه غوړ مکلفه خوراک ته هم وئیلے شي. لکه نن به ساګ دال سره اوخورې. دال ساګ هم وائي.

— **سکړک**:. (۱) غریبانه ډوډۍ. چې څۀ د مخه کېږي. غریبانه مېلمستیا.(۲) د کسر نفسۍ د پاره مکلفې مېلمستیا دپاره هم وائي. لکه :داساګ سکړک به نن ماسره اوخورې.

**ساګلو**:- (سا+ګ+لو)(اس. مذ) پتیله.

**ساګله** :- (سا+ګ+ل)(اس. مو. ج :ساګلې) (۱) پتیله. فتیله. (۲) دېګ. (دلوئې خولې)

**ساګلی** :- (مو) (سا+ګ+ل+ئ)

**ساګلے** :- (مذ) (سا+ګ+لے)(اس) د لوئې خولې دېګ. وړوکے. ساګله. پتیله.

**ساګلے**:- (سا+ګ+لے)(اس. مذ. ج. ي)پرتیله. پاتله. پتیله.

**ساګنې** :- (سا+ګ+ن+ړے)(اس. مذ. ج. ساګنې) مجمعه. تال.

**ساګوان** :- (سا+ګ+وا+ن) (ه. اس)د یوې مشهورې ونې نوم. چې لرګے ئې ډېر ښکلے او مضبوط وي. د رېل ګاډې ډبې او فرنیچر وغېره ترې جوړېږي.

**ساګے** :- (سا+ګے)(اس. مذ. ج. ساګي)ماشے.

**ساګېنې** :- (سا+ګے+ن+ږي+ن)و — ساګنې)

**سال**:- (سا+ل) (صف)سیال. برابر.

خجالت لره ئې خروهي په ګېډه
کله سالے چارې کاندي غېر سال (خوشحال)

**سال**:- (سا+ل)(ف. اس. مذ)د ساګوان لرګے چې کشتۍ جهازونه د رېل ګاډې ډبې ترې جوړېږي. (کله کله د سال لفظ د کشتۍ او جهاز د پاره هم راوستے شي)

**سال**:- (سا+ل)(و. مذ)کال په پښتو کښې مجرد د سال لفظ نۀ استعمالېږي خو په مرکباتو کښې راځي.

— **آزمائے**:. (آ+ز+ما+ئے)(ف تر. اس. مذ)بوډا زوړ سړے، تجربه کار سړے.

— **فرد/خورد**:. (خُ+ر+د)(ف. تر. اس. مذ) د خورد سال مقلوب دے. یعني کم عمرے هلک.

— **خورده**:. (خُ+ر+دَ) (ف. تر. اس. مذ)هغه سړے چې ډېر کلونه ئې خوړلي وي. یا ډېرو کلونو خوړلے وي. مراد ترې زوړ عمرے سړے. بوډا. ضعیف. زوړ. څیز.

— **دیده**:. (دي+د)(ف. تر. اس. مذ)هغه سړے چې ډېر کلونه ئې لیدلي وي زوړ سړے. ډېر تجربه کار سړے.

— **شمسي**:. (ش+م+سي)(ف تر. اس. مذ)شمسي کال هغه کال چې حساب ئې نمر سره تعلق لري دا کال مشهور هئیت دا حکیم عمر خیام مرتب کړے ؤ. ددې کال ۳۶۵ ورځې ۵ګینټې ۴۸ منټه او ۴۷ ۱/۲ سیکنډه وي.

— **کبیسه**:. (سال+ک+بي+س) (اس. مذ)هغه فصلي کال چې د دیارلسو میاشتو وي چې هر درې کاله پس راځي ددې میاشتې د سوا کولو غرض دادے. چې دفصلي کلونو په حساب چې د کومو ورځو فرق راغلے وي هغه شمسي حساب سره برابر شي.

**سالګذشته**:-(سا+ل+ګُ+ز+ش+ت)(ف. تر. مذ)تېر شوے کال. تېر کال. پروسږ کال. پروسخ کال.

— **نامه**:. (نا+م) (۱) د کومې رسالې یا د اخبار د اجراء نه پس چې د هر کال په اخر کښې یو خاص غټ چاپ کولے شي. سالنامه بللے شي. کالنۍ. (۲) د کال روئداد.

**سال نو**:-(سا+ل+نو) ف تر. مذ)نوے کال — وما:. (سا+لو+(ه))(ف تر. مذ)کال او میاشت. تل. همېشه.

**سالِ هجري** :-(سا+لِ+ه+ج+ري)(ف تر. مذ)د هجري سن کال. د کلونو هغه شمار چې د حضور ﷺ د هجرت د وخت نه شورو شوے دے. د عیسوي سن په لحاظ دا د ۶۲۲ء نه شورو شوے ؤ. ددې کال ۳۵۰۴ ورځې اتۀ ګینټې او ۴۸ منټه وي. او د عربي میاشتې ئې په دې ډول دي :ل محرم ،صفره، ربیع الاول، ربیع الاخر(یا ربیع الثاني) ، جمادي الاول ، جمادي الثاني، رجب ، شعبان ، رمضان ، شوال ، ذي قعده ، ذي الحجه، (پښتو کښې د ځینو میاشتو نومونه بدل کړے شوي دي.

— **سالها سال**:.اص.ډېر ډېر کلونه. په کلونو.

**سالار** :-(سا+لا+ر)(ف. مذ. ج. سالاران (۱) د فوځ مشر. (۲) مطلق مشر. پېشوا.

**سالاربیت الحرام**:-(سا+لا+ر+بې+ت+ل+ح+را+م)(عف تر. اس مذ)مراد ترے حضرت محمد مصطفٰی ﷺ دے.

— **جنګ**:. (ج+ن+ګ) (ف. تر) (۱) د یو فوځ جرنېل. د لښکر سردار. (۲) یو خطاب دے — خان/خوان:.(خا+ن/خ+وا+ن) (ف تر. اس. مذ) د باورچي خانې منتظم. (خان د خوان وران شکل دے).

**سالارقافله** :-(سا+لا+ر+قا+ف+لَ)(ف تر. مذ)د قافلې سردار. د قافلېمشر.

**سالارقوم** :-(سا+لا+ر+قو+م)(ف تر. مذ)د قوم سردار. د قام مشر.

**سالار** :-(سا+لا+ر)(اس مع)د ګد نو په دوه لو یو قبیلو کښې د یوې قبیلې نوم.

**سالارځے** :- (سا+لا+ر+زے)(اس مع. ج. سالارزئ ، مو: سالارزئ)د پښتنو یوه وړه ذیلي قبیله.

**سالارخېل** :-(سا+لا+ر+خېل)(اس مع)د دیهپال ځانګه ده چې پنې دي.

**سالارزئ**:- (سا+لا+ر+ز+ئ) (۱)د الیاس زوبنېر والو یو ښاخ ددې بیا دوه ځانګې دي. یعني اپ خېل اوملي خېل.

**سالارزئ**:- (دوغه)(۲) (اس مع)د ترکاڼو په څلورو ښاخونو کښې د یو ښاخ نوم. (استوګه. باجوړ)

**سالارزئ** :- (سا+لا+ر+ز+ئ) (۱)(اس مع)د حمزه زوي ځانګه ده چې (د عرب خېل ، سنزرخېل) کارکړ دي. (استوګه + لور الائ) (په بل ځائے کښې عربي خېل لیکلي دي)

**سالارزئ** :- (دوغه)(۲)(اس مع)د لمر کاکړو یوه ځانګه ده.

**سالاک** :-(سا+لا+ک)(اس مع. مذ)یو پښتون عالم مجاهد. مشهور په اخون سالاک د اکبر پورې د خون پنجو خاص مرید ؤ. چې د هزارې په علاقه کښې د کافرانو سره ډېرې غزاګانې کړې دي. او ډېر خلق ئې اسلام ته را اړولي وو.

اے ولي اخون سالاکه
په ظاهر په باطن پاکه (حافظ)

**سالاک** :- (سا+لا+ک) (و ـــ څالاک)

**سالانه** :- (سا+لا+نَ) (ف ـ صف) د کال ـ د کال په سر ـ هر کال ـ (۱) کالیز ـ کلیز ـ هغه عمل یا څیز چې درست کال سره تعلق لري ـ لکه سالانه امدن ـ (۲) هغه تنخواه وغیره چې کال په کال ورکولے شي ـ (په مقابله کښې د ماهانه یا فصلانه)

ـــ **رپورټ**:- (رَ+پو+ر) +ټ) (ف انګ ـ تر ـ مذ ج ـ وونه) د کـــــــال د کارګردګۍ په حقله معلومات ـ په کال کښې د شوي کار په حقله لیکلې شوې اطلاع.

**سالب** :- (سا+ل+ب) (ع ـ اس ـ فاع ـ مذ) په زور راکښونکے ـ سلب کوونکے ـ منع یا نفي کوونکے.

**سالبه** :- (سا+ل+بَ) ع ـ اس ـ مو) د علم منطق یوه اصطلاح ده ، هغه قضیه ترې مراد ده چې د سلب حکم لري ددې دوه قسمونه دي (وړاندې راځي) د نفي نسئله.

ـــ **جزئیه**:- (ـــ ج+ز+ئ+ی) (ع ـ تر ـ اس ـ مو) هغه سالبه چې پکښې د بعض نفي وي یعني د کل نفي وي ـ

ـــ **کلیه**:- (ـــ ک+ی+ی) (ع تر ـ اس ـ مو) په منطق کښې هغه سالبه چې د کل نفي کوي ـ

**سالف** :- (سا+ل+ف) (ع ـ اس ـ فاع) وړاندې تېر شوے ـ پخوانے ـ قدیم ـ

**سالک** :- (سا+ل+ک) (ع ـ فا ـ ج ـ سالکان ـ مو: سالکه ـ ج ـ سالکې) (۱) په لاره تلونے ـ لار وهونکے ـ مسافر ـ (۲) په تصوف کښې هغه صوفي چې مقصود ته رسېدو د پاره چې د سلاک د مختلفو منزلونو نه تېرېږي.

**سالکان عرش** :- (سا+ل+کا+ن+ع+ر+ش) (ف تر ـ اس ـ مذ) (۱) فرښتے ـ) اهل سلوک (د صوفیانو اصطلاح)

**سالک خېل** :- (سا+ل+ک+خېل) (اس مع) د عمر زویوه څانګه ده ـ چې ناصر غلزئ دي ـ

**سالکزئ** :- (سا+ل+ک+ز+ئ) د حمزه زویو څانګه ده چې (د عرب خېل سنزر خېل) کاکړ دي ـ (په بل ځائے کښې: عربي خېل لیکلي دي)

**سالګره** :- (سا+ل+ګ+ر) (اس ـ مو ـ ج ـ سالګرې) کال پس د کومې خاص ورځې یادونه، خصوصًا د عمر هو کال نه پس د پېداوښت د ورځې د ستوره ـ (کال ـ کالیزه ـ کلیزه ـ عمومًا د غم یا مرګ د ورځې د یادونې د ستورې ته وائي.

**سالم** :- (سا+ل+م) (ع ـ صف ـ مو: سالمه) (۱) ثابت ـ پوره ـ بې عیبه ـ (۲) محفوظ ـ روغ رمټ ـ سلامت ـ (۳) (قواد) هغه فعل چې پکښې کمزورے حرف نه وي یا پکښې دوه صحیح حرفونه یو ځائے نه وي ـ راغلي (۴) (عروض) د رکن او بحر نوم ـ (۵) د سړو په نوم کښې استعمالېږي ـ

ـــ **الاعضاء** :- (سا+ل+مُ+ل+اَ+ع+ضا) هغه کسر چې د بدن ټول اعضاء ئې صحیح او درست وي ـ

**سالمًاوغالمًا** :- (سا+ل+م+ن+و+غا+لا+مًا) (ع تر) د عربي د عائیه جمله ده ـ په سفر تلونکي ته وئیلے شي ـ چې صحیح سالم لاړ شاو د ځان سره غنیمت (مال) راوړي.

**سالم خانزئ** :- (سا+ل+م+خا+ن+ز+ئ) (اس مع) د جلال زو یوه څانګه ده چې د (حسن خېل ، بېل خېل ، موسٰی خېل دي ـ

**سالن** :- (سا+ل+ن) (و ـــ سالن)

**سالنډې** :- (سا+ل+ن+ډ+ې) (و ـــ سالنډے)

**سالنډے** :- (سا+ل+ن+ډ+ے) (پ ـ اس ـ مذ) (۱) هغه سړے چې ساه ئې لنډه وي ـ (۲) مجازًا تنګ زړے سړے چې زر قهرېږي یا زر خفه کېږي.

**سالنډے** :- (سا+ل+ن+ډ+ے) (پ ـ اس ـ مذ) (۱) سالنډے د منډے سخت کار نه پس ساه لنډه لنډه اخستل ـ (۲) د یوې بیمارۍ نوم ـ کوته ـ ساهي ـ دمه ـ

ـــ **راتلل**:- (۱) د ساه لنډے د مرض چپه راتلل ـ (۲) ډېر زر او چالاک راتلل ـ لکه څنګه داسې سالنډے راغلې ـ

**سالنډي** :- (سا+ل+ن+ډ+ي) (پ ـ اس ـ مو) د یوې بیمارۍ نوم چې ساه پکښې لنډه لنډه اخستے شي ـ دمه ـ

**سالڼ** :- (سا+ل+ن+ڼ) (اس ـ مذ ـ ج ـ سالڼونه) پخکړے ـ اینګولے ـ نګلے ـ کتنغ ـ سالنګ ـ

**سالنګ** :- (سا+ل+ن+ګ) (و ـــ سالن)

**سالنګي** :- (سا+ل+ن+ګ+ي) (پ ق ـ اس ـ مو) د پښتو د دړد بیمارۍ.

ـــ **نیول**:- اص ـ د پښتو د دړد بیمارۍ اخته کېدل ـ

**سالو** :- (سا+لوُ) (اس ـ مذ ج ـ کان) څادر ، اغوستونے (دښځو) عمومًا سور رنګ لري ـ

که اوړنے مقیش دوزي دے که سالو دے
دا هـــــمه واړه له سپین پړوني ځار شه ! (خوشحال)

ـــ **کول**:- اص ـ سور کول ـ سور رنګے کول ـ (د سالو په رنګ کول چې عمومًا سور وي)

**سالو** :- (سا+لُو) (اس ـ مذ) پسته شګه.

**سالوس** :- (سا+لُو+س) (ف ـ صف) (۱) دوکه فریب (خصوصًا هغه دوکه چې څوک خپل ظاهري شکل و صورت سره یا په خپله غوړه ژبه وکوي ـ (۲) دوکه باز فریبي ـ منافق ـ غوړژبتوب ـ دروغ جن توب.

**سالوک** :- (سا+لُو+ک) (ف ـ اس ـ مذ) (۱) لارې شوکوونکے ـ ډاکه مار ـ راهزن (۲) خوني ـ

**سالوک** :- (سا+لُو+ک) (ع ـ اس ـ مذ) چې ډېر په سفر ګرځي ـ سیاح ـ

**سالولا** :- (سا+لُو+لا) (پ ق ـ اس ـ مذ) د زنانو د څادر یو قسم ـ

**سالون** :- (سا+لُ+ن) (انګ Saloon) کوټه ـ کمره ـ

ـــ **د خوراک** :- د خوراک کوټه ـ ډائي ننګ روم ـ

ـــ **د لوستلو** :- د لوستلو یعني د مطالعې کمره ـ ریډنګ روم.

ـــ **د مشروباتو**:- (۱) د شربت وغیره د څښکلو کوټه ـ (۲) هغه دوکان چې پکښې د څښکلو څیزونه ملاوېږي.

ـــ **د مطالعې** :- د لوستلو کوټه ـ سټډي (روم)

**ساله** :- (سا+ل) (لاحقه) لحقه ده ، نورو الفاظونه وروستو لګولے شي ـ او د کال معنٰی ورکوي ـ لکه دوساله.

**ساله** :- (سا+لَ) (پ ق ـ اس ـ مو) د وښو جوړ پُوزے چې قروت وچولو د پاره پرغوړ وي.

**ساله** :- (سا+ل) (پ ق ـ مو) میانه ـ مینځومانه.

ـــ **چار**:- اص ـ هغه کار چې د سیالانو سره جوړېږي سمه اوښئ چار ـ

خجالت لره ئې خر وهي په ګېډه
کله سالے چارې کاندي غېر سال (خوشحال)

**سالې** :- (سا+لې) (و ـــ سالن)

**سام** :- (سا+م) (اس مع) اریاؤ په وېدونو کښې د دویم وېد نوم ـ سام وېد ـ په دې کښې تقریبًا ټول هغه منترونه دي کوم چې په "رګ وېد" کښې دي ـ رګ وېد د پښتنو د خاورې سره خاص تعلق لري ـ

**سام**:- (سا+م)(فا ـ اس مع ـ مذ)د ایران یو مشهور پهلوان چې د نریمان زوئے ؤ ـ د زال پلار او د رستم نیکه ؤ.

**سام**:- (سا+م)(اس مذ) مهم ـ هېبت ـ وېره ترهه ـ (اصلاً د سهم بدل شکل دے)

**ــــ پرېوتل**:ـ اص ـ (په چا)وېره طاري کېدل ـ رعب پرېوتل ـ

**ساماتک**:- (سا+ما+ت+ک)

**سایمېټک**:-(سا+یمي+ټ+ک)(انګ /انګپ ـ اص) هغه څیز ـ کار ـ نسل ـ خط وغېره چې بني ادمو سامي نسل سره تعلق لري ـ سامي

**سامان**:- (سا+ما+ن)(ف ـ مذ ـ ج ـ سامانونه)(۱) څیزونه ـ اسباب ورخر ـ کالي ـ (۲) بندوبست ـ بند ـ انتظام ـ (۳) شان وشوکت.

**ــــ کول**:ـ اص(۱) بندوبست کول ـ انتظام کول ـ (۲) د شان و شوکت نمائش کول ـ

**په ــــ کښې کېدل**:ـ اص ـ په شان شوکت کښې کېدل ـ د خپل دولت وغېره نمائش کول ـ

**سامان/تفریح**:-(سا+ما+ن+ت+ف+ري+ح))(عف تر ـ اس جم)د تفریح یا د زړۀ د خوشحالولو یا مشغولولو څیزونه ـ لوبې وغېره.

**سامانِ جنګ**:-(سا+ما+ن+ج+ن+ګ)(ف تر ـ مذ)د جنګ سره متعلق ضروریات ـ لکه وسله او نور څیزونه چې په جنګ کښې پکارېږي ـ

**سامان حرب**:-(سا+ما+ن+ح+ر+ب)(عف تر ـ مذ)(وـــ سامان جنګ)

**سامانِ سفر**:-(سا+ما+ن+س+ف+ر)(عف ـ تر ـ مذ)د سفر د پاره ضروریات ـ هغه څیزونه چې په سفر کښې پکارېږي.

**سامان عېش**:-(سا+ما+ن+عې+ش)(عف تر ـ مذ)د عېش سامان ـ هغه څیزونه چې ارام او د زړۀ د خوشحالولو د پاره پکارولے شي.

**سام اندر**:-(سا+م+ا+ن+د+ر)(ف ـ اس ـ مذ)سمندر، داور چینجے)

**سامانه**:- (سا+ما+ن)(فپ ـ مو)شان شوکت ـ نمائش ـ ځان ښودنه ـ

**ــــ کول**:ـ اص ـ د ځان ښودنه کول ـ نمائش کول ـ

**سامانے**:- (سا+ما+نے)(اس ـ جم) د انګورو د ولو سره چې نورې ولې هم دهلته نه راووځي.

**ساماني**:-(سا+ما+ني)(ف ـ اس ـ مع)د بخارا د یو مشهور شاهي خاندان نوم ـ چې د سامان اولاد ؤ ـ شپږ نیم شلې کاله ئې باچاهي کړې ده ـ

ساماني په جهان هم وو!

سلـــجوقي وو هم پېدا (خوشحال)

**سامبال**:- (سا+م+با+ل)(وـــ سمبال)

**سامبالېدنه**:-(سا+م+با+لے+د+ن)(وــــ سمبالېدنه)

**سامبولے**:-(سا+م+بو+لے)(پ ق ـ اس ـ مذ ـ ج : سامبولي ـ مو:سامبولۍ) برښه ـ لغړ.

**سامح** :- (سا+م+ح)(ع ـ اس ـ فا ـ ج ـ ان)(۱) چشم پوشي کوونکے ـ اغماض کوونکے ـ بخښونکے ـ معاف کوونکے ـ (۲) بهادر ـ ځوانمرد.

**سام خېل**:-(سا+م+خېل)(اس مع) د سرو غره ؤیو ځانګه چې کاکړ دي ـ

**سامر**:- (سا+م+ر) (ع ـ اس فا ـ ج ـ ان) قصه ګو ـ داستان یا قصه ویونکے

**سامراج**:- (سا+م+را+ج)(اس ـ مذ)بادشاهت ـ شاهنشاهیت ـ استعمار

**سامراجي**:-(سا+م+را+جي) (صف) بادشاهي ـ شهنشاهیتي ـ استعماري.

**سامره**:- (سا+م+ر) (وـــ څامره)

**سامري**:-(سا+م+ري)(اس مع)یو سړے چې د مصر نه راوتلو په وخت کښې بني اسرائیلو سره ؤ ـ حضرت موسیٰ علیه السلام چې د خدائے پاک په حکم د کوه طور غرۀ ته لاړو نو د هغۀ په غېرحاضرۍ کښې دې سړي د خلقو نه زر جمع کړل او د یو سخي بُت ئې ترې جوړ کړو ـ او دبني اسرائیلو څۀ خلق ئې د دغې بُت پرستش ته راواړول ـ

پښتانۀ زرګوانو ته طنزاً د سامري اولاد وائي.

**سامړه**:- (سا+م+ړ)(ه ـ صف) (اصلاً د هندکو د "سامړے" (مخامخ) بدل شکل دے)

**ــــ کول**:ـ اص ـ(۱) مخامخ کول ـ ښکاره کول ـل (۲) مقابلـــه کـــول ـ (سا+م+ړ) (اصلاً د هندکو د "سامړے" بدل شکل دے)

**ــــ کېدل**:ـ اص ـ مخامخ کېدل ـ په مقبله کښې راتلل)

**سامع**:- (سا+م+ع)(ع ـ فا ـ ج ـ سامعان ـ سامعین)اورېدونکے ـ اورېدونے ـ نغوتونکے ـ سمع کوونکے ـ

سامع د هر ګفتار دے رب زما (رحمان)

**سامعه** :- (سا+م+ع)(ع ـ اس ـ مو ج :سامعے)(۱) د اورېدلو قوت ـ شنوایۍ(۲)

**غوږــــ خراشي**:ـ(خ+را+شي)د اورېدو د قوت زخمي کونه ـ خراب او بد لګېدونکے اواز کول ـ مجازاً ناګواره ناخوښه خبرې کول ـ بکواس کول ـ

**ــــ نوازي**:- (۱) ساز و سرود وغېره غږونه ـ (۲) سندرې وئېنه یا موسیقي اورېدنه (۳) خوږې او خونده ورې خبرې کونه ـ (د اورېدو د قوت پالنه)

**ــــ کول**:ـ (۱) چاته ساز و سرود وغېره غږول ـ (۲) خوږې سندرې (چاته) وئیل ـ (۳) خوږے او خوندورے خبرے کول ـ

**سامعین**:- (سا+م+عي+ن) (ع ـ مذ)د سامع جمع ده ـ اورېدونکي.

**سامل زئ**:-(سا+م+ل+ز+ئ)(اس مع)د بنګشو د دریو ښاخونو نه یو ښاخ دے ـ دا بیا په دریو څانګو وېشلے شوے دے ـ یعني ممازئ ـ نعماني ـ علي زئ.

**سامِلي یا سملي**:-(سا+م/س+م+لي)(اس مع)د کانسي یا کاسي یوه قبیله ده ـ

**سامن**:- (سا+م+ن)(انګ ـ اس)یو خاص قسم سمندري کب دے چې د پخولو نه پس په ډبو کښې بندولے شي ـ

**سامئ**:- (سا+م+ئ)(پ ق ـ اس مو) په امسا کښې لګېدلے د اوسپنې تېرۀ څوکه ـ

**سمي** :- (سا+مي)(اس)د نوح علیه السلام زوئے سام سره تعلق لرونکے.

(۱) د سام نسل ـ (۲) د سام د نسل د خلقو ژبې (ژبې) یا دود دستور.

**سامېریم**:-(سا+مي+ري+ي+م)(انګ ـ مذ)د دهات یو عنصر چې ډېر کامیاب دے.

**سامېز** :- (سا+مي+ز)(ف ـ اس مذ)هغه کانړے چې تُورې چهرې پرې تېرولے شي ـ باټ ـ برجو ـ سان.

**سان** :- (سا+ن) (ف ـ لاحقه)د فارسي لاحقه ده ـ د الفاظو نه وروستو لګولے شي ـ او د مانند په شان معنیٰ ورکوي ـ لکه یکسان ـ (د پښتو الفاظ په اخر کښې نون غنه نۀ راځي ـ ځکه ددې تلفظ یکسان یا یکسانه کولے شي)

**سان** :- (سا+ن)(ف ـ مذ ـ ج ـ ونه)د چړو چاقوانو وغېره د تېرۀ کولو کانړے ـ باټ ـ برجو.

**ــــ ورکول**:ـ (۱) تر سان تېرول ـ تېرۀ کول ـ (۲) تر نظره تېرول ـ نظر پرې کول

**تر ــــ تېرول**:ـ سان کول ـ په باټ کول ـ تېرول ـ

**تر ــــ نیول**:- (وـــ تر سان تېرول)

**سان**:- (سا+ن) (مذ ـ ج :سانونه) انګڼ ـ غولے ـ (د صحن وران شکل دے) مشهوره سپینه کپړه ـ هندۍ کښې ورته لټه وائي.

**سان**: (سا+ن) (اس ـ مذ ج ـ سانونه) معائینه ـ ملاحظه.

**ــــ نیول**:ـ اص ملاحظه کول ـ معایئنه کول ـ

**سانتي:-** (سا+ن+تي)(کر - سابقه) سلمه - په سلو کښې يوه برخه - (د سانتيم نه جوړ شوے دے)

**ـــ متر:-** (م+ت+ر)(انګ يافر - اس - مذ - ج - مترونه) د کچ يوه پيمانه چې د ميټر (متر) سلمه برخه وي - (ا ـ ق) سنتي ميټر -

**سانتاکلاز:-** (سا+ن+تا+ک+لا+ز)(انګ - اس مع) د شانتيا کلاز بدل شکل دے - د انګريزي لفظ د شينټ نکولس وران شکل دے - د براډن پير - عيسائيان د براډن (کرسمس) په شپه يو جدا به غونډې د ماشومانون کتونو سره نږدې زوړنده کړي چې د شپې به دغه بزرګ راځي - او په دې کښې ددوي د پاره تحفې اچوي - بيا هغوي پخپله پکښې ښکلې ښکلې تحفې واچوي او چې سحر د کرسمس په ورځ ماشومان راوېښ شي - نو خپلې تحفې واخلي او خوشحاله شي.

**سانتيم:-** (سا+ن+تي+م) (ف - اس) سانتي - سلمه - (ا ـ ق)

**سانچه:-** (سا+ن+چ)(اس - مو - ج - سانچې) قالب.

**سانح :-** (سا+ن+ح)

**سانحه:-** (سا+نِ+حَ)(ع - اس) (۱) ظاهر کېدونکے - پېښېدونکے - حادثه - واقعه (۲) هغه ښکار چې د ښکاري د ښي لاس د طرفه راشي - نو هغه مبارک ګڼلے شي او (کوم ښکار چې د ګڅ (ګېن) طرفه راشي نو هغه سپېرۀ ګڼلے شي او "بارح" ورته وائي.

**سانحه:-** (سا+ن+ح)(اس مو - ج - سانحې) واقعه - پېښه - غوريکه - (عمومًا غمناکه پېښه)

**سانحه عظيم:-** (سا+نِ+حَ+ئے+ع+ظي+م)(عف - تر - مو) لويه سانحه ډېر لوئے مصيبت. افت لويه حادثه -

**ساندو:-** (سا+ن+دُو)(اس - مذ - ج - ګان) (ساندے ويونکے - نوحه ګر - وير کوونکے

**سانده:-** (سا+ن+دَ)(اس - مو - ج - ساندې) (۱) د غم ژړا - په مړي ژړا - خصوصًا په ژړا کښې د مړي ځينې خبرې يا کارنامې يادول - ويره - (۲) مرثيه -

**ساندې :-** (سا+ن+دې)(پ - اس - ج)(وـــ سانده)

**ـــ وهل:-** اص (۱) سرې پسې په چغو چغو ژړل - (۲) د مړي ماتم کول - وير کول -

**ـــ ويل:-** اص - د مړي مرثيه وئيل -

**ساندے:-** (سا+ن+دے)(اس - مذ - ج :ساندې) - هغه مېلمه چې ډېرې ورځې چاکره تېرې کړي - او کوربه د پاره يو تکليف جوړ شي -

**سانډ:-** (سا+ن+ډ)(اس - مذ - ج - سانډان) (۱) هغه غوئيے چې خاص طور سره د نسل کشۍ د پاره ساتلے شوے وي - (۲) مجازًا تکړه غټ پټ ځوان چې څۀ کار نۀ کوي او تياره خوري - (۳) زناکار سړے -

**سانډو:-** (سا+ن+ډُو)(اس - مذ - ج - سانډوګان) (۱) د ښځې د خور خاوند - (۲) سست او بيکاره غوايه -

**سانډه :-** (سا+ن+ډ) (وـــ ځانډه)

**سانډه :-** (سا+ن+ډ)(اس - مو - ج - سانډې) خمڅره چې تېل ترې وښکے شي - چې په دارُو کښې استعمالېږي -

**د ـــ تېل:-** اص، هغه تېل چې د يو خاص قسم صحرائي خمڅرے نه ايستے شي او په دارو کښې استعمالېږي - د سانډے تېل.

**سانګ:-** (سا+ن+ګ)(اس - مذ) يو قسم کالے -

ټيک پېزوان چارګل اوګې لونګين سانګ دے
قـــط غـــوټې دلکش اواز د خخال غـــوارم (حافظ)

**سانسور:-** (سا+ن+سو+ر)(اس مذ - ج - سانسورنه) منع - قدغن - بندېز (ا ـ ق)

**سانک :-** (سا+ن+ک)(وـــ ښانک)

**سانګک:-** سا+ن+ګ) (وـــ ځانګ)

**سانګار:-** (سا+ن+ګا+ر)(اس - مذ - ج - سانګارونه) هغه تالاؤ چې پکښې د ګڼو چينو اوبۀ راجمع کېږي -

**سانګلے:-** (سا+ن+ګ+لے)(اس - مف) (۱) په سانګه وهلے شوے - په نيزه وهلے شوے چخ شوے - (۲) مجازًا پېغورلے - په عيب يا بدو ياد شوے - مطعون.

**سانګوړی:-** (سا+ن+ګو+ړَ+ی)(وـــ ځانګوړی)

**سانګه:-** (سا+ن+ګ)(وـــ ځانګه)

**سانګه :-** (سا+ن+ګَ)(اس - مذ - ج - سانګے) نيزه -

**ـــ وهل:-** نيزه وهل -

**سانګی :-** (سا+ن+ک+ی) (اس - مو) وره ځانګه.

**سانګی:-** (سا+ن+ک+ی) (اس - مو) ښاخې - درې غاخې - د زميندارئې هغه اله چې غله پرې بادوي.

**سانګے:-** (ا ـ ق)(سا+ن+ګے)(اس - مذ - ج - ګې) دو ښاخه لرګے چې دام په هغه کښې نغښتے شي -

**سنګے :-** (سا+ن+ګے)(اس - مذ ج - سانګي) وره شفاخانه - وړوکے هسپتال يا ډسپنسري.

**سانګي خېل :-** (سا+ن+ګي+خېل)(اس - مع) د جلال دينو يوه ځانګه ده. چې (شيخ بازيد خېل - ابسپ (يوسف) خېل ،زئ خېل ، بومۍ ، نصرئ، کالوخېل ، احمد زئ، درويش خېل) وزيردي.

**سانګيز :-** (سا+ن+ګي+ز) (وـــ ځانګيز)

**سانګې سانګې :-** (سا+ن+ګې+سا+ن+ګې)(وـــ ځانګې ځانګې)

**سانيال خېل :-** (سا+ن+يا+ل+خېل)(سنزل خېل)

**سانېټ :-** (سا+نے+ټ) (انګ - اس - مذ - ج - ونه) د انګريزي د نظم يا خاص صنف چې څوارلس مصرعې لري - او د قافيو مختلف قسم ترتيب لري.

**ساؤ :-** (سا+ؤ)(اس - مذ)قلنګ - ماليه - باج - خراج - ټيکس.

**ساؤت:-** (سا+وو+ت)(انګ - اس - مذ) سهيل - جنوب.

**ساوته :-** (سا+ؤ+ت)(انګ - اس - مذ) (او د ډېرو ښهرونو وغېره نومونو سره راځي)

**ساوتے :-** (سا+و+تے) (اس - مذ - ج - ي) رېږدولې تبه - سره لوې تبه - د سره لوې تبه - مليريا د منې تبه -

**ساؤل :-** (سا+و+ل)(اس - مع) شاولي - د يهوديانو اولنے باچا چې په قرآن کښې ورته طالوت وئيلے شوي دي -

**ساؤنډ :-** (سا+ؤ+ن+ډ)(انګ - اس - مذ)اواز - غږ - ږغ)

**ـــ بکس:-** (ب+ک+/ک+س) (انګ - تر - اس - مذ - ج - ونه) د ګراموفون (ټېکلو باجه) هغه اله چې د ستنې په حرکت اواز پيدا کوي.

**ـــ پروف:-** (پ+رو+ف)(انګ - تر - صف) هغه ځائے يو کوټه ، چې د باهرنې اواز نه محفوظه کړے شوے وي.

**ـــ سسټم:-** (س+س+ټ+م) د اواز سره متعلق سسټم - د اواز سره متعلق الات وغېره

**ساوڼ :-** (سا+و+ن+ړ)(ه - اس - مذ) د ساون مياشت ، د هندوانو د کلينډر خلورمه مياشت د پشکال مياشت -

**ساوڼ**:- (سا+و+ن+ړ)(اس معرفه ـ مذ)د بلوچستان د لوري يو مشهور پراری، (مفرد) چې پېرنګيانو سره ئې ډزې کولې ـ او اوس په غاړو کښې ياد ېږي.

**ساوو** :- (سا+وُو)(وـــ ساهو)

**ساوو** :- (سا+وُو)(صف ـ مذ)ازاد خپلواک.

**ساوے** :- (سا+وے) (اس ـ مذ ـ ج:ساوي/ساويان)هغه اس چې ډېره منډه وهلے شي. يعني چې لويه ساه لري ـ

**ساويسا** :- (سا+وي+سا)(اس ـ مو)اعتبار ـ اعتماد ـ ساه ويسا ـ

**ـــ پاسېدل**:- اِص ـ اعتماد نۀ پاتې کېدل ـ اعتبارنۀ کول ـ

**ساه**:- (اس ـ مو ـ ج :ساه ګانې (ساوې)هغه هو چې ژوندي ساري د پوزې په لار (يا کله کله د خولے په لار) پرپوس ته ورننه باسي او بيا ترې راوباسي ـ د ژوندي ساري د ژوند انحصار په همدغه ساه دے. (۲) مجازاً ـ ژوند ـ حيات.

**ـــ اټالېدل**:- (په مرۍ کښې)(۱) ساه په مرۍ کښې نښتل ـ مرګي حال کېدل ـ چې نۀ مري او نه سمه ساه اخستې شي ـ(۲) مجازاً ـ سخت وخت تېرول ـ

**ـــ اچول**:- په بې ځانه څيز کښې د ساه اخستو قوت پېدا کول ـ ژوند ے (جوند ے) کول ژوند(جوند)ورکول.

**ـــ اخستل**:- اِص ـ(۱) د پوزے يا د خولے په لار هوا پرپوس ته ننه باسل (اوراوباسل)(۲) (مجازاً) ژوند ے بودل ـ (۳) لږه دمه کول ـ (۴) په تکليف کښې يا خرابو حالاتو کښې وخت تېرول.

**ـــ اخستو ته پرېښودل**:-لږ وار ورکول ـ لږ صبر کول ـ د ځان دمه کولو مهلت ورکول. لکه : سړيه لږ ساه اخيستو ته خو مې پرېږده !

**ـــ اړدول**:- ضبط کول ـ ځان د عمل نه ژغورل ـ ما هغۀ ته ډېره ساه اوړده کړې وه ـ

**ـــ او اوبۀ**:- اِص ـ اب و هوا (ق)ـــ ايستل /اباسل ـ يستل(دچانه):- (۱) وژل (۲) وېرول ـ په رعب کښې راوستل ـ

**ـــ بندي**:- (ب+ن+دي)(۱) د ساه بندېدنه(۲) دمه ـ کوته ـ ساهي.

**ـــ بندېدل**:- (مص تر) (۱) د ساه اخستلو لاربندېدل ـ ساه اخستل ـ بندېدل ـ (۲) مړ کېدل ـ

**ـــ بېړۍ**:- اِص ـ جهاز ـ هوائي جهاز (ق)

**ـــ په لنډه اخيستل**:- (وه ـ ساه لنډه لنډه کېدل)

**ـــ پورې بودل**:-ژوند ے بو دل ـ لاساه تلل راتلل لکه : څۀ حال دے. ساه راپورې ده زويه !

**ـــ په سکينړو اخستل**:- اِص ـ په ډېره سخته ساه خستل ـ

**ـــ په سکينړوکېدل**:- اِص ـ ساه په ډېره سخته اخستل ـ ساه لنډه لنډه خستل ـ ساه لنډه لنډه کېدل ـ

**ـــ په کونه کښې**:- په نه څۀ خبره مړ کېدونکے ـ مړ کېدو ته تيار سړے چې ايله څۀ بانه غواړي ساه خولې له راتلل ـ خو طنزاً د خولې په ځائے د کونه لفظ استعمالېږي ـ

**ـــ تلل**:- ساه نۀ پاتې کېدل ـ مړ کېدل.

**ـــ تلل راتلل**:- اِص ـ د هوا دننه (پرپوس) ته تلل او بيا راوتل مجازاً ژوند ے بودل ـ

**ـــ تنګے**:- ـــ ت+ن+ګے)هغه سړے چې د ساه په خستو کښې ګراتتيا محسوسوي ـ مجازاً تنګ زړے چې زر او په نۀڅۀ خبره خفه کېږي.

**ـــ تنګي**:-اِص ـ ساه تنګېدل ـ ساه په ګرانه اخيستل ـ

**ـــ تېرے**:- ـــ (تې+رے) (۱) د وخت تېرونه د وخت اړول ـ (۲) هغه لويه وغېره چې وخت پرې په ښۀ شان يو خوشحالي سره واوړي ـ د وخت د تېرولو د پاره مشغولا ـ (ق)

**ـــ ختل**:- اِص ـ (۱) مړ کېدل ـ ژوند ے نۀ پاتې کېدل ـ (۲) څۀ څيز سره بې کچه هسه مينه يا تړون لرل ـ چې هغه ترې لږ جدا کېږي نو ساه ئې (ورپسې) خېژي (۳) وېرېدل ـ په رعب کښې راتلل ـ

**ـــ ختلے**:- (۱) هغه سړے چې د وېرے ساه اخستل ورته ګرانه شوې وي ـ وېرې اخستے ـ حېران پرېشان ـ (۲) هغه سړے چې ساه اخستل بند کړي مطلق خاموشه او بې حرکته ـ مړ ـ

**ـــ ختلے کښېنستل**:- اِص ـ داسې کښېناستل لکه چې ساه ئې ختلې وي مجازاً ډېر غمجن او حېران و پرېشان کښېناستل.(ق)

**ـــ خولے**:- بردبار ـ حليم ـ ډېر زغم واله ـ(ق)

**ـــ د شمېر دي**:د انسان د شمېر ساه ګانے دي عمر مقرر دے د انسان ژوند (جوند) مقرر دے.

**ـــ ډوبے**:-(ـــ ډو+بے)(۱) ساه ډوبېدل ـ ساه دننه تلل ـ او بيا نۀ راوتل ـ د ساه اخستو تنګسه ـ(۲) د حېرانتيا يا د وېرې په وجه ساه تنګېدل.

**ـــ ډوبے**:-(ـــ ډُو+بے)(۱) تنګ زړې سړې ته وائي چې زر خفه کېږي ـ (مجازاً) (۲) په کار کښې سست په کار کښې زړۀ نه لګوونکے ـ

**ـــ راښکل**:-اِص ـ ساه نيول ـ ساه (پخپله) بندول ـ (ځان نه مړے جوړول)

**ـــ ساه**:-(سا(ه))هغه په زر زر ساه اخلي ـ لکه د ډېرې منډې نه پس چې ساه اخستے شي ـ

**ـــ شړل**:- اِص ـ ساه راښکل ـ پخپله ساه اخستل بندول ـ

**ـــ ښکته پورته کېدل**:- اِص ـ ساه زرزر يا بې قاعدې تلل راتلل ـ لکه د اوږدې منډې نه پس.

**ـــ کښل اباسل ايستل وېستل**:- وژل ـ مړ کول.

**ساه ساه کېدل** :- (۱) د ډېرې منډې يا د مشقت د کار نه پس ساه لنډه او تېزه کېدل ـ (۲) ستړے کېدل.

**ـــ لرل**:-ځان لرل ـ ژوند (جوند) لرل.

**ـــ لنډه لنډه کېدل**:- اِص ـ د منډے يا د مرض په وجه لنډه لنډه ساه اخستل ـ

**ـــ ساه لنډے**:- اِص ـ (وـــ سالنډے)

**مېچ**:-(مې+چ)(اـ ق) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د هو د کچ پيمونه. ميقاس(الهوا)

**ـــ نغړودل**:-(۱) ساه دننه طرف ته راښکل ـ (۲) ساه بندول د ځان نه مړے جوړول ساه راښکل ـ

**ـــ ننبتل**:- اِص ـ داسې حالت چې ساه نۀ شي اخستے د مرګ وخت ـ

**ـــ نيولے**:- اِص(۱) چې د وېرې وغېره په وجه چا ساه اخستل بنده کړې وي په وېره ـ په ترهه ـ خوفزده ـ هېبت اخستے ـ (۲) ډېر غلے غلے ـ چې د ساه اواز هم وانۀ ورېدے شي ـ ډېر په قلار ـ

**ـــ وتل**:- اِص ـ مړ کېدل ژوند نۀ پاتې کېدل ـ

**ـــ ولاړېدل**:- اِص ـ د څۀ څيز سخا کېدل ـ بدو بويه کېدل ـ (ق)

**ـــ وېسا**:- (ـــ وے+بسا) (وـــ ساويسا)

**ـــ ئې ځي راځي**:ساه اخلي ـ (لا ژوند ے دے ـ

**په ـــ صورت**:- ښۀ په آرام او قلار ـ په ښۀ اطمينان سره.

**په ـــ صورت کېدل**:- اِص ـ په ښۀ ارام کېدل ـ په اطمينان کېدل ـ د منډې يا د وېرې نه پس خپل صحيح حالت ته راتلل ـ

**په ـــ کښې اخيستل**:- يا په کښې الوزول، دا دواړه محاورې "مار" سره يوځائے راځي لکه فلانې مار په ساه کښې والوزاوۀ ـ يا فلانې مار په ساه کښې واخست ـ مطلب دا چې فلانے د وېرې او دهېبت په وجه پخپله د مار خولې له ورغے ـ (ق)

**په ـــ کېدل**:۔اص۔په اطمینان کېدل۔لږ دمه کېدل۔
**په ـــ وهل**:۔اص۔د اوبو یا د بل څهٔ ځیز د ساه په نالی کښې تلل چې پرې بنیادم له تږخې ورشي۔په بده مرۍ تلل (ق) لکه "اُوبهٔ مې په ساه اووهلې اوټوخېدم"(اولسي ناموس)
**په یوه ـــ**:۔ د یوې ساه اخستو په وخت کښې یا د یوې ساه په راښکلو کښې چې څومره کېدے شي لکه : په یوه ساه ئې ورته شل کنځل وکړل۔
**د ـــ ځیز**:۔ ساه واله ځیز. ځان دار،ژوندے ساري مجازاً اودخوږ ظلم وغېره احساس لري۔
**ژوره ـــ کښل**:۔ اوږده ساه راښکل۔
**ساهر** :- (سا+هِ+ر) (ع۔اس۔فا۔ج۔ان بېدار۔ویښ اوسېدونکے۔
**ساهني خېل** :-(سا+ه+ني+خېل) (اس مع)د کنډیو څانګه ده چې (تور خېل ، عمرزیٔ،شین (یاسین) خېل ،درویش خېل،وزیر دي۔
**ساهو** :- (سا+هُو)(ه۔صف)(١) دیانتدار ، ایماندار ۔(٢) عزتمند ۔نېک نومے۔(٣) سوداګر ۔دوکاندار۔(۴) سېټھ(هندو)شتمن۔
**ساهو** :- ( سا+هُو)(اس۔مذ ۔ج :ګان)اصیل شریف ۔ازاد ۔سادو۔
**ساهوګی** :- (سا+هو+ګی)(اس۔مع)د قیمت خېلو یوه وړه څانګه ده۔چې (حیدر خېل،تپي زاد ،دوړ) دي۔
**ساه ویسا** :- (وــ ساویسا)
**ساهه** :- (سا+هَ) (اس مؤ ۔ج ۔هې)ساه (د تانیث په طور)
په ژوندون له مانه مه ځه د یار غمه
تـهٔ به سم زما له ساهې سره تلهٔ کړې (خوشحال)
**ساهې** :- (سا+هې)(ع۔اس۔فا۔مذ)هېروونکے۔غافل۔
**سائ** :- (سا+ئ)(ف۔لاحقه)د فارسي لاحقه ده چې د نورو الفاظونو وروستو لګولے شي۔او د مړلوسولولو معنٰی ورکوي۔لکه جبین سای۔تندے سُولول۔
**سائ** :- (سا+ئ)(اس۔مذ ۔ج : ونه)د سېلاب د تلو لاز خوړ۔د اوبو د تېرېدلو لاز۔
**سائبا** :- (سا+ئ+با) (اس۔مع۔مؤ)د عشقیه قیصې معشوقه۔صحیح تلفظ ئې "صاحبان"دے چې مېرزا پرې مئین ؤ۔
د سائبا د حسن تـــاب مېـــرزا بې تاب کړه
ناسازبخت ئې بښې بشرې په خون لت پت ږدي (حافظ)
**سائبان** :- (سا+ئ+با+ن)(اس۔مذ ۔ج :سائبانونه) (١) هغــه تنبـــو چـــې دیوالونه نهٔ لري۔او د سوري د پاره لګولے شي۔ (٢) هر هغـه ځیـز چـې د سوري د پاره جوړولے شي۔چتر۔
چې د تا د سر غبار ئې په سر پرېوت
هـمائي ظل ئې په سر تل سائبان ځي (سعید خټک)
**سائ توپلازم** :- (سا+ئ/+س+تو+لا+ز+م)(انګ۔اس۔مذ)په ژوندی (جوندی) حُلیه کښې جوهري جز دپروټو پلازم ماده چې په خپله کښې بدلون راولي۔
**سـائ ټـوجي** :-(سـا+ئ+ټو/ټا+لو+جي)(انګ۔اس۔مـو)د خلیـاتو علـم۔علـم الخلیات۔
**سائح** :-( سا+را+ح) (ع۔اس۔فا)(١) روژه دار ۔روژه (روجه)نیونکے۔
(٢) د عبادت د پاره په جومات (جماعت) کښې پاتې کېدونکے۔
**سائېدل** :- (سا+ئ+د+ل)سهېدل۔برداشت کېدل۔
**سائېږ** :- (سا+ئي+ږ)(انګ۔اس۔مذ ۔ج:ونه) طرف۔اړخ۔پلو۔لور۔

**سائېږ**:-(اخستل (دچا) طرف داري کول۔پره کښې شاملېدل۔
**ـــ بورډ**:۔ (بو+ر+ډ)(انګ۔تر۔اس۔مذ ۔ج:ونه)هغه خاص الماری کومه چې د خوراک په کوټه کښې پرته وي او پکښې لوښي پراتهٔ وي۔
**ـــ واک**:۔(وا+ک) (انګ۔تر۔اس۔ج:ونه)هغه پخه لاز چې د لوئے سړک په غاړه (یا دوا روغاړو)د پلود تګ دپاره جوړه کړې شوے وي۔څنګ۔لاره۔فټ پات۔
**سـائر** :- (سـا+ا+ر)(ع+اس۔فـا)(١) ټـول۔کـل۔تمـام(٢) سېر(سـېل) کـوونکے ګرځېدونکے۔لاروے
مخ ئې سم ونیوه سیمې د مدین ته
د نصیب اوبـهٔ سپرتـل د سائـر شي (حافظ)
(٣) جاري۔روان۔(۴) باقي۔
**ـــ کېدل**:۔ اص۔ سفر کول۔تلل۔روانېدل۔
سکندر غوښت آب حیات سائر له ملو سره وو
خضر څو ګامه شهٔ روښې کامیاب سلطان ته راغې (حافظ)
**ـــ ودائر**:۔ (سا+ا+رو+دا+ا+ر)(ع۔تر)(١) ګرځېدونکے۔ګردش کوونکے۔
(٢) جاري او مشهور۔
**سائرن** :- (سا+ئ+ر+ن)(اس۔مذ ۔ج :ونه)هغه بیګل یاد کومې الې وښکلے اواز چې د څهٔ خطرې په وخت غږولے شي۔دخطرې غږ۔ګوګو۔
**سایره**:- (سا+ئ+ر) (اس۔مو۔ج:ې)یوه خوش اوازه مرغۍ چې په پنجره کښې ساتلے شي۔سیکه۔
**سائرین** :- (سا+ا+ري+ن)(ع۔اس۔ج)د سائر جمع ده۔ټول۔همه۔
**سائز**:- (سا+ئ+ز)(انګ۔اس۔مذ)حجم۔قدوقامت۔اوږدوالے،پلنوالے۔
**سائس**:- (سا+ئ+س)(ع۔اس۔مذ)د اس حفاظت کوونکے۔
**سائع**:- (سا+ا+ع)(ع۔اس۔فا)هلاکېدونکے۔
**سائغ** :-(سا+ا+غ)(ع۔اس۔فا)خوندناک۔مزېدار۔خوش ذائقه۔
**سائیفین** :-(سا+ل+ف+ن)(انګ۔اس مذ)(١) د شیشې وغېره نلی۔چې پکښې اوبه د برفي لوښي نه ، د لوښي د ژۍ(جوا)نه ورواؤړلے شي او ښکتني لوښي ته راوستے شي۔ (٢) دغـه طریقـه پـه نهرونـو ولـو کښـې هـم استعمالولے شي۔
**سائق**:- (سا+ء+ق)(ع۔اس۔فا۔ج۔ان)د وروستو نه شړونکے۔شړونکے۔
د تمام کاروان به څرنګ سلامت ځي
چــې رهزن ئې بدرقه قائد سائق وي (حافظ)
**سائیکالوجسـت** :- (سـا+ئ+کا+لو/ئ+ج+س+ټ)(اس۔مـذ۔ج۔ان)د نفسیاتو د علم ماهر۔
**سائیکالوجي** :- (سا+ئ/ئ+کا+لو/ئ+جي)(اس۔مو)د نفسیاتو علم۔
**سائیکل** :- (سا+ئ+ک+ل)(انګ۔اس۔مذ ۔ج: ونه) د بائیسکل مخفف دے ۔هغه مشهوره سورلے چې دوه پائې لري۔
**سائیکلسټ** :-(سا+ئ+ک+ل+س+ټ)(انګ۔اس۔مـذ۔ج:ان، مـوه) هغـه کـس چې د بائسېکل د چلولو ماهر وي۔د سائېکل د چلولو ماهر۔
**سائیکلوپیډیا** :- (سا+ئ+ک+لو+پې+ډ+یا)(انګ۔اس۔مو)هغه کتاب چې په کښې د مختلفو (تقریبًا)د ټولو علومو او ځیزونو په حقله معلومات د حروف بـې پـه ترتیـب راجمـع کـړے شـوي وي۔مخـزن د معلومـاتو د معلوماتو مجموعه۔(دائرته المعارف)
**سائکلون** :-(سا+ئ+ک+لو+ن)(انګ۔اس۔مذ) څرخېدونکے طوفان یاسیلی۔
**سائل** :- (سا+ئ+ل)(ع۔اس۔فا۔ج۔ان ،مو:سائله)(١) سوال کوونکے۔تپوس

کوونکے ۔ پوښتنه کوونکے ۔ (۲) سوال گر ۔ فقیر ۔ گدا۔ (۳) درخواست ورکونکے ۔ (۴) سپل کوونکے ۔ روان بهیدونکے۔

**ــــ بکف**:۔ (ب+ک+ف) هغه سوال گر یا فقیر چې خېرات په لاس کښې اخلي ۔ یعني کچکول یا څۀ لوښے هم ورسره نۀ وي ۔

**سائ لنټ** :-(سا+ئ+ل+ن+ټ)(انگ ۔ امر) خاموش شه یا شئ ۔ د چپ کول ۔ امر ۔ چپ شه یا شئ۔

**سائمنزئ** :-(سا+ئ+م+ن+ز+ئ)(اس مع) د مسے زویو څانگه ۔ چې (پاریزن) سنزر خېل) کاکړ دي ۔

**سائمه** :-(سا+ا+م)(ع ۔اس ۔ نا :مو) هغه څاروي چې بهر څري ۔

**سائن** :-(سا+ئ+ن) (انگ ۔اس ۔ مذ ۔ج :ونه) (۱) نښان نخښه ۔ اشاره ۔ زونگه ۔ علامه (۲) دستخط ۔

**ــــ کول**:خپله نښه لگول ۔ مجازاً دستخط کول ۔

**سائن** :-بورډ (بو+ر+ډ)(اس ۔ مذ ۔ ج ونه) هغه تخته چې د دوکانونو دپاسه لگېدلے وي ۔ او د دغه دوکان نوم وغېره پرې د پاسه لیکلے شوے وي۔

**ــــ پوسټ**:-(پو+س+ټ)(انگ ۔ اسم ۔ مذ ،ج ونه) هغه وړه شان تخته ۔ چې د سړکونو په غاړه لگېدلے وي ۔ او لاروو ته لارښائي یا هدایات ورکوي۔

**سائنټسټ** :-(سا+ئ+ن+ټ+س+ټ) (انگ ۔ اس ۔ مذ ۔ج ۔ان) هغه کس چې د سائنسي علومو لکه طبیعات یا کیمیا وغېره ماهر وي۔

**سائنټفک** :-(سا+ا+ن+ټ+ف+ک)(انگ ۔ ص) هغه څیز یا کار چې علمي وي ۔ یعني سائنسي علم سره مطابق وي ۔

**سائین خېل** :-(سا+ئ+ن+خېل)(اس مع) د عزیز خېلو یوه څانگه چې (اکازئ عیسٰی زئ) یوسفزئ دي ۔

**سائنس** :- (سا+ئ+ن+س)(انگ ۔ اس ۔ مذ) علم خصوصاً هغه علم چې طبیعات یا کیمیا وغېره سره تعلق لري ۔ (د فن په مقابله کښې)

**ــــ پوهه**:- (پو+ه) سائنسدان ۔

**ــــ دان**:۔ (دا+ن)(انگ تر ۔ اس ۔ مذ ۔ج ۔ ان ۔ مو ۔ دانه) هغه کس چې علم لري ۔ یعني د طبعیاتو یا کیمیا وغېره علومو ماهر وي ۔ د فالولته ۔ د سائنس شعبه ۔ د سائنس فیکلټي طبعي (ط+ب+عي) قدرتي فزیقي ۔ سائینس فزکس ۔

**سائنسي** :-(سا+ئ+ن+سي) (انگپ تر ۔ صف) سائنس سره متعلق (د ارټ یا ادب په مقابله کښې) هغو علومو سره متعلق چې د سائنس یو دائره کښې راځي ۔ لکه طبیعیات کیمیا وغېره ۔

**سایه** :- (سا+ئ)

**سائنس** :( سا+ئ+ن+س)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ سائنسي) (و... سائنس) سورے ۔ سرپرستي ۔ حمایت ۔

**سایه**:-افگن (ا+ف+گ+ن)(ف ۔تر ۔ صف ۔ مذ ۔ مو ۔ افگنه) (۱) سورے اچوونکے ۔ سورے کوونکے ۔ (۲) مجازاً حفاظت کوونکے ۔ پالنه کوونکے ۔

**ــــ بان**:۔اِص، سورے کوونکے ۔ سائبان ۔ چتر ۔

چې په سر باندې ئې ابر سایه بان وو (خوشحال)

**ــــ دار**:۔ (دا+ر)(فا تر ۔ صف ۔ مذ ۔ مو ۔ داره) (۱) سورے لرونکے ۔ سورے واله هغه ونه وغېره چې سورے لري ۔ (۲) هغه کس چې سورے پرې شوے وي ۔ اسیب زده (فارسي)

**ــــ الوئید**:۔ سوري راوړډېدل ۔

**ــــ ح**:۔ (ح+ه) هغه عبارت چې مخ ئې سویل (جنوب) ته وي مخسوري سیورن۔

**ــــ رست**:۔ (رُ+س+ت) (ف تر ۔ صف) (۱) هغه بوټے وغېره چې د لوئې ونې په سوري کښې پیدا شوے وي ۔ (۲) په ناز نعمت کښې لوئے شوے ۔ (۳) ناتجربه کار ۔

**ــــ گستر**:۔ اِص، مهربان ۔ سرپرست ۔ سورے کوونکے ۔

چې د لولاک تاج ئې په سر سایه گستر دے مدام
په صبح وشام متابعت د پاک سرور ونیسه (حافظ)

**ــــ وان**:۔(وا+ن) سائبان ۔ هغه تنبو وغېره چې د سوري د پاره لگولے شي۔

**په ــــ خلاصول**:۔اِص۔ په خپل سوري پناه کول ۔ تر خپل سوري لاندې راوستل۔

**په ــــ کښې لوئېدل**:۔ په سوري کښې لوئېدل ۔ په ډېر عېش او ارام کښې لوئېدل ۔ په ژوند کښې د نمر تاؤ قدرې نۀ لیدل ۔ په ناز او نعمت کښې لوئېدل ۔

**تر ــــ لاندې**:۔ اِص ۔ تر سوري لاندې ۔ په سرپرستۍ کښې ۔

**دخپلې ــــ ځخه یرېدل**:۔ د خپل سوري نه وېرېدل ۔ ډېر وېرېدل ۔ د هر څیز نه وېره کول۔

**د چا په ــــ کښې**:۔ د چا په سوري کښې ۔ د چا سرپرستۍ لاندې ۔ د چا حفاظت او مرستې لاندې۔

**سب** :- (س+ب)(ع ۔ اس ۔ مذ) (۱) کنځل ۔ بنکنځل ۔ زیږه ۔ (۲) بد رد وئیل ۔ لعن طعن کول ۔ سپوره ستغه ۔

**ــــ کول**:- اِص ۔ بد رد وئیل ۔ بد وئیل ۔ کنځل کول ۔

ــــ (س+بي)(انگ ۔ صف) ماتحت ۔ نائب (دا لفظ اصلًا د سبارډي نیټ (Subordinate) مخفف دے او عموماً د سابقې په طور نورو الفاظو سره لگولے شي) لکه :سب افس :ماتحت دفتر ۔

**ــــ افس**:۔ (آ+ف+س) (انگ تر ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) ماتحت دفتر ۔ وړوکے دفتر ۔

**ــــ انسپکټر**:۔(اِن+س+پ+ک+ټ+ر) (انگ ۔ تر ۔ مذ ۔ ج۔ ان) ماتحت انسپکټر ۔ ماتحت معائنه کوونکے افسر ۔

**ــــ اوورسیر**:۔ (او+و+ر+ر+س+ي+ر) (انگ تر ۔ مذ ۔ ج ۔ ان) ماتحت اوورسیئر ۔ ماتحت نگران ۔

**ــــ پوسټ آفس**:۔ (پو+س+ټ+آ+ف+س)(انگ ۔ تر ۔ مذ ۔ج ونه) ماتختې ډاکخانې ۔ وړې ډاکخانې ۔

**ــــ پوسټ ماسټر**:۔ (پو+س+ټ+ما+س+ټ+ر) (انگ ۔ تر ۔ مذ ۔ ج ۔ ان) د ډاکخانې ماتحت افسر ۔ یاد وړوکې ډاکخانې بابو ۔

**ــــ ټراپیکي**:۔ (ټ+را+پي+کي) (انگ ۔ صف) د خط سرطان او د خط جدي تر مینځه خط ۔ منتطقه حاده ۔ لکه سب ټراپیکي سمیه۔

**ــــ جج**:۔ (ج+ج)(انگ تر اس ۔ مذ ۔ج۔ ان) ماتحت جج ۔ هغه جج چې د شین جج ماتحت وي۔

**ــــ ډویژن**:۔ (ډ+وي+ژ+ن) (انگ تر ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ونه) (۱) د نهر وغېره د محکمو مقرره کړې یوه خاص رقبه ۔ د ضلعې حصه ۔ (۲) د محکمې یو څانگه ۔

**ــــ ډویژنل افیسر**:۔ (ډ+وه+ژ+ن+ل+آ+في+س+ر) (نگ تر اس ۔ ج ۔ ان) د یو سب ډویژن افسر یا ذمه دار (عموماً دے افسر ته مخففاً اس+ډی+او+وائي)

**ــــ رجسټرار**:۔ (ر+ج+س+ټ+را+ر) (انگ تر ۔ اس مذ ج ۔ ان) د رجسټرار ماتحت افسر ۔

**ــــ سټېشن**:۔ (س+ټې+ش+ن) وړوکے سټېشن ۔ وړوکے ټېن۔

**ــــ میرین**:- (مي+ري+ن)(انگ تر ۔ اس مذ ، ج ۔ ونه) هغه جنگي جهاز چې د اوبو د لاندې ځي یعني په اوبو کښې ډوب تلے شي ۔ ډوب ماکو۔

**سبا** :- (س+با)(اس مع) (۱) د یمن ځینو قبیلو د غُر نیکه نوم ۔(۲) په یمن کښې د دغو قبیلو علاقه ۔ (۳) د سبا د علاقې یوه زوره وره ملکه ۔ چې په قرآن کښې ئې ذکر راغلے دے ۔ د سلیمان علیه السلام د لیدو د پاره ببت

المقدس ته راغلې وه. او د هغه د شان شوکت وغېره نه ډېره متاثره شوې وه د حضرت سلېمان علیه السلام د ملاقات نه پس بېرته خپل وطن تـه لاړه . په ځینو کتابونو کښې ئې نوم بلقیس ښودلے شوے دے.

**سبا** :۔(س+با) (پ۔اس۔مذ) و ـــــــ صبا

**ـــ روح** (رق)(اس۔مو)(ز+و+(د)ز)د تنګسې ورځ۔

**ـــ رون** (رُو+ن) سحر وختے چې ایله ایله سبا شوے وي سحر ګار۔ سپیدۍ چاود۔ صباون چې ایله رڼا ښکاره شي۔

**ـــ سترګه**:۔اص۔د سحر ستورے۔د سهار (سحر) سترګه۔

**ـــ کېدل**:۔ اص۔ سحر کېدل۔ صبا کېدل۔

**ـــ ګون**:۔ (ګو+ن)(اس۔مذ۔ج ونه) سباون۔شین سهار (سحر) لوے ګهسیځ۔ د شپې اخرینۍ برخه۔

**ـــ له**:۔(= لَ)په سبانۍ ورځ۔ سباته۔سبا۔

**ـــ نارے**:۔(نا+رے)د سحر خوراک۔ ناشته۔

**ـــ نه بل سبا**:د سبانۍ ورځې نه پس راتلونکې ورځ دریمه راتلونکې ورځ

**په ـــ په ما**:۔ سحر او ماښام ۔مجازاً هر وخت۔تل۔

**د ـــ ګون شفق**:۔ د نمر خاته نه اول ، د اسمان سرخي۔

**شپه ـــ کول**:۔ شپه ختمول۔شپه تر سبا پورې اړول۔

**سباب** :-(سا+با+ب)(ع مذ)کنځل۔ښکنځل۔زیږي۔

**سبابه** :- (س+با+ب)(ع۔اس۔مو۔ج۔یے) د کټې ګوتې سره جخته ګوته د شهادت ګوته مسواکه ګوته د کلمې ګوته ۔لاګو ۔مکړه۔

**سبات** :- (س+با+ت)(ع۔اس۔مذ)(۱) زمانه دوران۔ (۲) خوب۔ارام۔

**سبات** :- (س+با+ت) (ق۔اس۔مذ۔ج۔سباتونه)(۱) درشل۔دهلیز۔(۲) د اثبات مفغن۔

**سباتول** :- (س+با+ت+و+ل)(ق۔مص)اثبات کول۔ثابته کول د اثبات مفغن دے

**سباحت** :- (س/سِ+با+ح+ت)(ع۔اس۔مذ)لانبو۔لاتبوزنۍ۔شناورۍ۔

**سباړې نیټ**:- (س+با+ر+ړې+نې+ټ)(انګ تر۔صف) ماتحت کارکونکے۔ ماتحت افسر۔

**سباع** :- (س+با+ع)(ع۔اس)د تسبیع جمع۔زمرے ببر زمرے د زندګان۔ ځنګلي شلونکے ځناور۔

**سباعي** :- (س+با+عی)(ع۔اس مو)(۱) د نظم یو قسم چې پکښې اووۀ مصرعې وي۔(۲) اووۀ اسمانونه یا اووۀ ستوري۔(۳) هغه لفظ چې اووۀ توري (حرفونه) لري۔(۴) تندرست چست او چالوک سړے۔

**سباغ** :- (س+با+غ)(ع۔اس۔مذ)انګولے۔سالن۔پخکړے۔

**سباق** :- (س+با+ق) (ع۔مذ)(۱) وړاندې والے۔وړاندې تېر شوے یاتېر شونے۔ د سیاق په مقابله کښې چې پسته (وروستو روتلونکې) تـه وائي (۲) د سبقت وړلو کوښښ۔د وړاندې کېدلو کوښښ۔

**سیاقو ـــ** (س+یا+قو)د وړاندې وروستو ۔اکثر په یو عبارت کښې د وړاندې وروستو ربط د پاره استعمالېږي۔

**سباقو**:- (س+ب+با+ق و) (ع۔اس۔فا) هغه سړے چې د نورو نه سبقت وړي ۔ډېر وړاندې کېدونکے۔

**سباکور** :- (س+با+کور)(اس مع) د خلیل خېلو یوه څانګه۔چې (قاسم خېل) (ترک زئ) مهمند دي۔

**سبال** :- (س+با+ل) (ع۔اس)د سبلت جمع ده۔بریت۔

**سبانے** :- (س+با+نے) (صف مذ ، مو۔ نۍ)د سبا (ورځې) سره تعلق لرونکے لکه سباني کارونه به سبا کېږي۔

**سبائي** :- (س+با+ئي)(اس۔ظرف)(۱) د صبا وخت۔د کر وخت۔سحر۔سحر وختي۔صبائي۔(۲) دسبا(صبا) سره تعلق لرونکے ۔لکه : سبائي مال۔

**سبب** :- (س+ب+ب)(ع۔اس۔مذ۔ج۔سببونه (اسباب) (۱) پړے۔رسۍ۔(۲) قرابت خپلولي۔رشته داري۔(۳) باعث۔وجه۔علت۔(۴) ذریعه۔وسیله۔(۵) د علم عروض په اصطلاح کښې هغه (دوه حرفي په دوه توري مشتمل) کلمه چې یو خوئې دواړه حرفونه متحرک وي یا یو متحرک وي او دویم ساکن وي

**ـــ ثقیل**(ـــ ث+قی+ل)(هاتر۔مذ)هغه دوه حرفۍ لفظ چې دویم حرف ېې متحرک وي۔

**ـــ جوړول**:۔ اص۔ ذریعه جوړول۔وسیله جوړول۔

چې هادي ئې سبب جزړ د هدایت کا
د بلقیس په لور هُد هُد والوت سبا ته (حافظ)

**ـــ خفیف**:۔(ـــ خ+فی+ف)(ع تر۔مذ)هغه دوه حرفۍ کلمه چې دویم حرف ئې ساکن وي(غړوندے لري)۔

**ـــ کېدل**:۔ وجه ګرځیدل۔باعث کیدل۔

دا لوے زویه ئې لوے مه شه
د رزو بـــــلال سبب شـول (خوشحال)

**سبت** :- (س+ب+ت)(ع اس۔ج۔سبتونه ، اسبات)د خالي ورځ۔شنبه۔د یهودیانو متبرکه ورځ۔چې په دغه ورځ دنیاوي کارونه نه کوي۔د یهودیانو په عقیده دا د ارام او استراحت ورځ ده۔

**سبت** :- ( س+ب+ت)(ق۔اس۔مذ۔ج:سبتونه)صدف۔سیپۍ۔

**سبجیکټ** :-( س+ب+ج+ک+ټ)(انګ۔اس۔مذ۔ج۔ونه)موضوع۔مضمون۔

**سبحان**:- (س+ب+حا+ن) (ع) (۱) پاکه ول۔پاکي وئیل۔(۲) پاک رب۔ خدا ے پاک۔

چې حراست ئې له خپل سبحان وے
حسرت ئـــې بخره د دشمنان وے )سعید خټک(

**سبحان الله** :-(س+ب+حا+ن+ل+لا+ه)(ع۔مذ)اصل معنٰی ددې جملې دادي چې زۀ د الله پاک پاکیزګي بیانوم او په تسبیح کښې وئیلے کېږي۔د تعجب او حېرت کلمه ده۔د صفت او د تحسین کلمه ده۔

**سبحانه**:- (س+ب+حا+ن+هو)(ع۔صف)پاکي ده هغه لره۔د هغه پاکي ده د خدا ے پاک صفت د الله پاک نومونو سره وئیلے شي۔

**سبحاني** :- (س+ب+حا+نی)(ع۔صف) سبحان سره متعلق۔سبحان ته منسوب د خدا ے پاک۔خدائي۔

**سبحه** :-(س+ب+ح) (ع۔اس۔مو)(۱) تسبیح۔تسبې یاتسپې۔(۲) د خدا ے پاک ذکر کول۔

**سبحله**:- (س+ب+ح+ل)(ع۔اس۔مو)د سبحان الله جمله وئیل۔

**سبخ** :- (س+ب+خ)(ص) تر هند ۔وحشتناک۔هولناک۔

**سبد** :- (س+ب+د)(ع۔اس۔مذ۔ج :سبدونه) ټوکرۍ۔پچې۔شکرۍ۔

که د باغ انګور ئې ډېر وي وخپل پلار ته
مګـــر درست ژنګورے ورکا له سبده (خوشحال)

**سبر** :- (س+ب+ر) (ع) (۱) د زخم ژور (جور) والے معلومولـو د پاره په زخم کښې سلائي داخلول۔(۲) د څۀ ځیز ژور (جور) والے معلومول۔(۳) ازمیل۔

**ـــ** (س+ب+ز)(اس۔مذ۔ج :سبرونه) د سرونه۔

د سبر ونـه ګوره په زمان شي نا منظوره
چې وخوزې په باغ کښې تۀ په دا قد وبالا (خوشحال)

**سبرب**:(و ـــ صبر)(انګ۔اس۔مذ)د یو ښار د خواؤشا ابادي۔د ناحیې

ابادي ـ د يو ښار نه چار چاپېره د غريبانانو ابادي ـ

**سبرکه** :- (س+ب+ر+ک)(اس ـ مو ـ ج : سبرکې)سيلۍ ـ تېز باد ـ

**سبره** :- (س+ب+ر)(اس ـ مو ـ ج :ې)سرو مشهوره ونه ـ

تهٔ چې هسې په چمن کښې چمان ګرځې
سبزه! تــــا زما د يار په قامت نه زده! (خوشحال)

**سبرے** :- (س+ب+ر+ے)(ق ـ اس ـ مذ ـ مو :سبرۍ) شـمکور ـ چـې پـه شـپه ورته څهٔ نهٔ ښکاري ـ

**سبز**:- (س+ب+ز)(ص ـ مذ ـ مو :سبزه ،ج:سبزې)(۱) مشين ـ د ونو پاڼو پـه شـان رنګ زرغون رنګ ـ (۲) تر و تازه ـ زرغون (بوټي) ـ(۳) سکنې ، معشوق ـ دې سره نور الفاظ هم راځي ـ لکه سبز تلخ ، سبز ګلګون ـ سبز شرين ـ سبز ګندم ګون وغيره ـ

**ــــ اخور**:- (ا+خو+ر) (ف تر ـ اس ـ مذ) (۱) اسمان ـ (۲) اصيل اس ـ (۳) هغـه اس چې په شنه او غوره خوراک لوے شوے وي ـ

**ــــ ارنګ**:- (ا+ر+ن+ګ)(ف تر ـ اس ـ مذ)(۱) شين رنګ ـ (۲) د موسيقۍ د يـو مقام نوم ـ

**ــــ بال**:-(با+ل)(ف تر ـ مذ)دانګورو يو قسم ـ

**ــــ بخت**:- (ب+خ+ت) (ف تر ـ صف)بختور ـ خوش قسمته ـ

**ــــ بختي**:- (ب+خ+تي)(ف ـ تر ـ اس)خوش بختي ـ بختوري ـ خوش نصيبي ـ

**ــــ بهار**:- (ب+ها+ر)(ف ـ تر ـ اس ـ مذ)(۱) شين سپرلے ـ (۲) د موسيقۍ د يـو راګ نوم ـ

**ــــ برګ**:- (ف تـر ـ اسم ـ مـذ) شـنه پاڼـه ـ د عـاجزۍ پـه طـور تحفـې د پـاره استعمالېږي ـ د فقير تحفه شنه پاڼه ـ

**ــــ پا**:-(ئے) (پارئے)(ف تر ـ اس ـ صف)سپېرهٔ ـ منحوس ـ بدپلے ـ

**ــــ پري**:- (پ+ري)(ف تر ـ اس ـ مو)(۱) د يو فرضـي هندي قيصـې هيروئنـه ـ شاهزاده ګلفام پېرۍ مئين ؤ ـ(۲) د پښـتنو د ښـځو نامـه ـ (۳) بنـګ (لـه) پـه فارسي کښې سپرلي ته هم وائي ـ

**ــــ پوش**:- (پو+ش)(ف تر ـ اس ـ مذ ، مو :پوشه)(۱) هغـه کس چې شنې جامې ئې اغوستې وي ـ (۲) زاهد ـ (۳) فرښته ـ (۴) خضر ـ

**سبزپوشان بهښت**:-(س+ب+ز+پو+شا+ن+ب+ه+ښ+ت)(ف تـر ـ اس)(۱) د جنت د شنو جامو مخلوق ـ مراد ترې حورې دي ـ (۲) فرښتې (د جنت)

**سبز** :- چشم (چ+ش+م) (ف تـر ـ صـف) هغـه کـس چـې شـنې (يـا خـړې شـان) سترګې لري ـ داسې سړے شر پسند او بې مروته ګڼلے شي ـ

**ــــ درسبز**:-(د+ر)(ف تر ـ اس ـ مذ)د موسيقۍ د يـو راګ نوم دے (سبز اندر هم ورته وائي)

**ــــ طاق**:- (طا+ق)(ف تر ـ اس مذ)اووه طاخونه مجازاً اسمان ـ

**ــــ طاوس**:- (طا+وُو+ؤ+س)(ف تر ـ اس ـ مذ) شين طاؤس مجازاً اسمان ـ

**ــــ طشت**:- (ط+ش+ت)(ف تر ـ اس ـ مذ)اووه تالې ـ مجازاً اسمان ـ

**ــــ قبا**:- (ق+با)(ف تر ـ اس ـ مذ)هغـه کس چې شنه قبائې اغوستې وي مجازاً اسمان ـ

**ــــ وار**:- (وا+ر)(اس مع)(۱) د هرات په خوا کښې يو ښار پخوانے نوم ئې اسفزار ؤ ـ (۲) په خراسان (ايران) کښې د يو ښار نوم ـ (۳) شين ډنډ ـ

**سبزان چمن** :- (س+ب+زا+ن+چ+م+ن) (فا تر ـ اس)د چمن يا د باغ (شنې) ونې ـ

**سـبزک** :- (س+ب+ز+ک)(ف ـ اس ـ مـذ)(۱) د شـرابي حواصـي ـ (۲) شـين تـېغ مشهور مارغهٔ ـ (۳) بنګ ـ (۴) د طوطي په شان يوه مرغۍ ده ـ چې طوطي نه لږه وړه وي ـ شين کومے ـ

**سبزه** :- (س+ب+ز) (ص ـ مو ـ ج :سبزې)مايحه ـ تمکينه ـ

خدايه شما راکړې
يــوه سبزه تمکينه (خوشحال)

**ــــ کېدل**:- اص ـ شين کېدل ـ زرغونېدل ـ

په ګـــريان ئې ګياه سبزه دميده شوه
د آدم خوئي د وانخست ، د چا ښېنت ئې (حافظ)

**سبزه** (س+ب+زَ) (ف ـ اس ـ مو ـ ج:سبزې)(۱) شـنهٔ وابـنـهٔ ـ (۲) د مـخ هغـه شـين والے چې د نوې ږيرې په راختو ښکاري ـ (۳) مجازاً ـ نوې راټوکيدلې ږيره د نوې ږيرې شين پشم ـ (۴) شين تېغ ـ(مشهور مارغهٔ)

**ــــ زار**:-(زا+ر)(ف تـر ـ اس ـ مـذ ـ ج ـ ونه)هغـه ځـاے چـې پکښـې شـين شينکے ډېر وي ـ

**سبزهٔ بهار** :-(س+ب+ز+ئے+ب+ها+ر)(ف تر ـ اس ـ مذ)د موسيقۍ د يو سُر نوم ـ

**سبزئے بيګانه** :- (ئے+بې+ګا+ن)(ف تر ـ اس ـ مو)هغه شنهٔ وابنهٔ چې پخپله او بې ځايه پيدا شوے وي ـ زميندار يا باغوان ئې د جړه اوباسي او اوغورځوي ـ

**سبزه خوابيـده** :- (س+ب+ز+ئے+خ+وا+بي+د)(ف تـر ـ اس ـ مـو) هغـه وابنـهٔ يـو شينکے ـ چې د پښو د لاړې دل شـوے وي يـا ئـې تيغـې پخپلـه کـږے شـوے وي

**سبزه خط** :-(س+ب+ز+ئے+خ+ط)(ف تر ـ مذک)نوې يا ټوکېدلې ږيره ـ د نوې پيدا شوې ږيرې شينوالے ـ

**سبزئ** :- (س+ب+ز+ئ)(اس مع) د شـدو زو يـوه ځانګـه ده چې (د علي زئ) (سنزرخېل) کاکړ دي ـ

**سبزي**:- (س+ب+زي)(اس ـ مو ـ ج ـ سبزي ـ سبزياني)(۱) شـين والـے ـ شـين رنګ والے ـ (۲) سبزي ترکاري ـ ساګ توري ـ بنډۍ وغيره چې پخولے شي ـ (۳) (ف) قدرومنزلت ـ (۴) د شرابو صراحي ـ

**ــــ فروش** (ف+رو+ش)(ف تر ـ اس ـ مذ ـ مو ـ فروشه)سبزي خرڅوونکے ـ هغـه دوکاندار چې سبزي ترکاري خرڅوي ـ

**ــــ کار**(کا+ر)سبزي (ترکاري وغيره) کرويکے د سبزو باغوان ـ

**ــــ کاري** :- (کا+ري)د سبزو (ترکارو وغيره) کروند ـ د سبزو ترکارو باغواني ـ

**سبزينه** :- (س+ب+زي+ن)(ق ـ اس)د شکنې رنګ معشوق ـ شکنې ـ معشوقه ـ

**ســب ســائيږ** :- (س+ب+ســا+ئي+ډ)(انګ ـ صـف) کښېناسـتل ـ فروکېـدل ـ کوزېدل ـ

**سبټينس** :-(س+ب+س+ټ+ن+س)(انګ ـ اس ـ مـذ)(۱) خلاصـه کـچ (۲) مـاده جوهر

**سبط** :- (س+ب+ط) (ع ـ مذ ـ ج:سبطونه ، اسباط)نمسے ـ نوسے ـ مسے ـ

**سبط** (س+ب+ط)(ع ـ اس ـ مذ)نوسے نمسے ـ زامن يا د زامنو اولاد ـ

**سبطاصـغر**:- (س+ب+ت+ا+ص+غ+ر)(ع تـر ـ اس ـ مـذ)وړوکے نوسے نمسے ـ حضرت امام حسين عليه السلام ترې مراد دے ـ

**سبط اکبر**:- (س+ب+ت+ا+ک+ب+ر)لوے نمسے ـ حضرت امام حسين رضي الله عنه ترې مراد دے ـ

**سبطين** :- (س+ب+طے+ن) (ع ـ اس ـ تشبيه) دوه نوسي (نمسي) مـراد تـرې حضرت امام حسن او حسين رضي الله عنهما دي ـ

**سبع** :-(س+ب+ع) (ع ـ اس ـ عدد)اووهٔ ـ هفت ـ

**سبع** :- (سُ+ب+/ب+ع/ع)(ع ـ اس)(۱) د څهٔ څيـز اوومـه برخـه (۲) د قرآن پـاک اوومه برخه چې ورته منزل وائي ـ

**سبع الوان** :- (س+ب+ع+ا+ل+وا+ن)(عف ـ تر اس ـ مذ)(۱) اووه رنګونه يعنې سپين ، تور ، شين ، سور ، زيړ ، نيله ، عباسي ، دا پخوانے خيال دے

اوس اصل رنګونه صرف درې دي ـ او د بوډۍ د ټال ـ (قوس قزح) رنګونه هم په بل ډول دي ـ (۲) اووهٔ اسمانونه ـ (۳) اووهٔ قسم خوراکونه ـ

**سبع سماوات** :- اص _اووهٔ اسمانونه ـ

**سبع** :- مثاني (م+ثا+نی) (ع ـ تر) (۱) سورهٔ فاتحه ـ د الحمدو سورت ځکه چې په دې کښې اووهٔ اياتونه دي ـ او په دوه رکعتېن مونځ کښې دوه ځله لوستلے شي ـ (۲) د قرآن اووهٔ لوے سورتونه يعنې سوره بقره نه واخلې سوره توبه پورې ـ

حافظ بې ماله غني دے که شاکر شي
خــــــزانه ئـــې قرآن سبع مثاني ده (حافظ)
ايــــــاکَ نعبُدُ لولې به سبع مثاني کښې
د زړهٔ دهرهوا دې هغه واړه دې معبود (خوشحال)

**سبعامعا** :- (س+ب+ع+ا+م+عا) (ع ـ اس ـ جمع) اووهٔ قلمې (کلمې) ـ يعنې اثنا عشرې ، صائم ، مستقيم ـ دقيق ـ تولون او اغورر داد پخوانے تقسيم دے ـ اوسنے تقسيم ئې په بېل ډول دے ـ

**سبعه سياره** :- (س+ب+ع+س+ي+يا+ر) (عف تر ـ اس ـ مذ) اووهٔ سيارې (ګرځنده ستورې) يعنې نم ، سپوږمۍ ، عطارد ، مريخ ، مشترې ، او زحل ، اوس د سيارو شمېر زيات شوے دے او نمر سپوږمۍ په کښې نه شمېرلے کېږي ـ

**سبع معلقات** :- (س+ب+ع+م+ع+ل+قا+ت) (ع ـ اس جمع) هغه مشهورې اووهٔ قصيدې چې د جاهليت په زمانه کښې د فخر او مقابلې د پاره د کعبې په دروازه زوړندې کړے شوې وې ـ

**سبق** :- (س+ب+ق) (اس ـ مذ ـ ج: سبقونه) (۱) درس ـ لوسته ـ (۲) عبرت نصيحت

**ـــــ اخستل**:- (۱) داستاونه (نوے) درس اخستل (۲) عبرت اخستل ـ نصيحت اخستل

**ـــــ اموز**:- (آ+مو+ز) (صف ـ مذ ـ ج ـ ه) (۱) سبق ورزده کونکے ـ استاز (۲) نصيحت ورکوونکے ـ داسې کار يو پېښه چې سړے ترې نصيحت يا عبرت واخلي ـ

**ـــــ خوان**:- (خ+وا+ن) (عف تر ـ مذ ـ مو خوانه) سبق لوستونکے ـ طالب علم ـ

**ـــــ زده کول**:- اص (۱) سبق وئيل ـ د چانه زده کړه کول ـ د استاز نه درس اخستل ـ (۲) نصيحت موندل ـ عبرت حاصلول ـ

**ـــــ ضبطول**:- (ض+ب+ط+و+ل) سبق يادول ـ سبق زوتول ـ (زوطول)

**ـــــ ګرځېدل**:- اص نصيحت يا عبرت ګرځېدل د څهٔ د پېښې يا سزا يا تکليف نه د مخې د پاره نصيحت اخستل او محطاط کېدل ـ

**ـــــ ملاوېدل**:- (۱) نصيحت ملاوېدل ـ عبرت حاصلېدل ـ (۲) تکليف يا سزا موندل

**ـــــ ورکول**:- اص (۱) شاګرد ته (نوے) درس ښودل (۲) نصيحت ورکول ـ خصوصاً دَ څهٔ بد کار سزا ورکول ـ چې د مخکښې د پاره محطاط اوسي

**ـــــ وئيل**:- (۱) خپل سبق يادول ـ علم حاصلول ـ (۲) سبق ښودل ـ تعليم ورکول ـ لکه ملاوې زهٔ خو هر چاته بې غرضه سبق وايم ـ

**ـــــ يادول**:- اص _زده کړے درس زوتول ـ

**په ـــــ کښيناستل** اِص _په مدرسه يا جمات کښې په اول ځل زده کړې د پاره تلل ـ

**په ـــــ کښېنول**:- اص _په مدرسه يا جومات کښې د زده کړې د پاره ماشوم بوتلل او داخلول ـ

**د ـــــ کوټه**:- (کو+ټه) هغه کوټه يا کمره چې هلکان پکښې سبق وائي ـ کلاس روم ـ

**سبقت** :- (س+ب+ق+ت) (ع ـ مذ ـ ج: سبقونه) (۱) وړاندې کېدنه ـ پېل کونه ـ (۲) مېدان لوبه وغېره ګټنه ـ

**ـــــ کول**:- اص ـ د چانه وړاندې کېدل ـ

**ـــــ کېدل**:- اص ـ شروع کېدل ـ پېل کېدل ـ

**ـــــ منل** (دچا):- اص ـ د چا د ځان نه وړاندې کېدنه تسليمول ـ د چا ګټه ورتوب منل ـ

**ـــــ موندل**:- اص ـ د وړاندې کېدلو موقع موندل ـ

**ـــــ وړل**:- (د چانه) (۱) د چانه وړاندې کېدل ـ د چانه مقابله يا لوبه وغېره کښې وړاندې کېدل ـ

**سبق خېل** :- (س+ب+ق+خېل) (اس مع) د بنادي خېلو يو څانګه ده ـ چې (بوبک) د (دنا) بيتني دي ـ

**سبقي** :- (س+ب+قی) (عپ تر ـ مذ ـ ج ـ ان) د سبق ملګرے ـ هم جمات ـ کلاس فېلو ـ

**سبک** :- (س+ب+ک) (اس ـ مذ ـ ج: سبکونه) (د سبق بدل شکل دے) مکتب فکر ـ سکول

**سبک** (س+ب+ک) (ف ـ صف) (۱) سپک ـ بې وزنه ـ (۲) چست و چالاک ـ (۳) زر ـ شتاب ـ (۴) بې قدره ـ

**ـــــ بال** :- اص ـ سپک ـ اسمان ـ

**ـــــ پائ** (پائے) هغه چې سپکې پښې لري ـ تېزه منډه وهونکے ـ ګړندے ـ تېز تلونے ـ تښتېدونکے ـ تښتته کوونکے ـ چالاک ـ

**ـــــ پر/پرواز** :- (پ+ر/پ+ر+وا+ز) (ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ پره / پروازه) تيزا کوتونکے ـ تېز پرک ـ

**ـــــ دست** (د+س+ت) (ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ دسته) په تېزۍ سره (د لاس) کار کوونکے په کار کښې ګړندے ـ تېز لاسے ـ سپک لاسے ـ چست او چټک کار کوونکے په کار کښې ګړندے او مړنے ـ

**ـــــ دستي** (د+س+تی) (ف تر ـ اس ـ مو ـ ج ـ دستۍ) د لاس په کار کښې تېزي ـ تېز دستي ـ

**ـــــ دوش** (دو+ش) (ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ دوشه) (۱) هغه کس چې اوږې ئې سپکې شي چې بار پرې نهٔ وي ـ (۲) فارغ البال چې ذمه وارۍ ئې نه وي يلغه (۳) ملازمت د ذمه وارۍ نه ازاد ـ ريټائرډ ـ

**سبک دوشه** :- کول ـ اص (۱) د چا د اوږونه ذمه واري لرې کول ـ (۲) د ملازمت سلسله ختمول ـ ريټائر کول ـ د نوکرۍ نه فارغ کول ـ

**ـــــ کېدل**:- اص (۱) د اوږو نه بار لرې کېدل ـ مجازاً ـ د ذمه وارنه نه خلاصون موندل ـ (خصوصاً د خپل کار سر ته رسولونه پس) (۲) د ملازمت نه ازادېدل د ملازمت د معيار د پوره کولو نه پس وزګارېدل رېټائر کېدل ـ د نوکرۍ نه فارغ کېدل ـ

**ـــــ دوشي**:- اص (۱) د ذمه وارۍ نه خلاصېدنه ـ (۲) د ملازمت معيار ختمېدل

**ـــــ رفتار** (ر+ف+تا+ر) (و ـــ سبک رو) (۱) تېز تلونکے ـ ګړندے ـ (۲) تښتېدونکے ـ تښتته کوونکے ـ

**ـــــ روح** (رو+ح) (ف تر ـ صف) خوش مزاجه ـ خوش خويه ـ خوش ګفتاره ـ د ښو اخلاقو خاوند ـ

**ـــــ سار** (سا+ر) (۱) سپک چې څهٔ بار پرې نه وي ـ فارغ البال ـ خوشحاله ـ بېنه تار ـ چټ ـ د ذمه وارۍ نه ازاد ـ (۲) بې غزته ـ (۳) کمينه ـ رزيل ـ

**ـــــ ساري** (سا+ری) (ف تر ـ اس ـ مو) (۱) فارغ البال ـ تجرد ـ (۲) مکينه توب ـ زلت

**ـــــ سر** :- (س+ر)(ف تر ـ صف)(۱) کم عقل ـ بېوقوف ـ (۲) کمینه ـ ذلیل ـ
**ـــــ سري** :-(س+ري)(ف تر ـ اس ـ مو)(۱) بېوقوفي ـ حماقت ـ (۲) کمینه توب (۳) افلاس ـ غریبي ـ
**ـــــ سیر**(سي+ر)(ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ سیره)تېز رفتاره ـ ګړندے ـ تېز ـ
**ـــــ طبع**(ط+ب+ع)(ف تر ـ صف)خوش طبع ـ خوش مزاجه ـ د ښو اخلاقو خاوند
**ـــــ ګام**(ګا+م)(ف ـ تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ګامه) تیز رفتاره ـ
**ـــــ مایه**(ما+ی)(ف تر ـ صف) م مایه ـ حقیر او سپک څیز ـ بې قدره څیز ـ
**ـــــ مغز**(م+غ+ز)(ف تر ـ صف)(۱) کم عقل ـ بېوقوف ـ (۲) بې وقاره ـ
**سپوږمۍ**:- ـــــ ته اشارت کول:ـ اِص ـ سپوږمۍ ته ګوته نیول ـ دا هغه واقعې ته اشاره ده چې رسول کریم ﷺ د ګوتې په اشاره سپوږمۍ دوه نیمه کړې وه ـ دا یوه معجزه وه ـ

اشارت د سبابے دې ورتـــــه وکـــړۀ
سپوږمۍ ځکه له هېبته دوه نیمۍ ده (خواجه محمد بنګش)

**ـــــ شپه**:- (اق) (ش+پ)(په تر ـ اس ـ مو ـ ج ـ ے)په سپوږمۍ رڼه شپه ـ شب مهتاب ـ
**ـــــ ګل**:- اِص ـــ در پښمین ګنډ یو قسم نقش ـ
**د ـــــ څوارلسمې**:ـ اِص ـ د څوارلسو شپو سپوږمۍ چې پوره ګړدنه شوې وي ـ بدر کامل ـ
**د ـــــ څوارلسمې**:ـ اِص ـ و ـــــ د څوارلسمې سپوږمۍ ـ
**د ـــــ کال**:ـ اِص ـ د هغې کیلنډر کال چې حساب ئې د سپوږمۍ په میاشتو کولے شي
**ـــــ مصنوعی**:ـ اِص ـ نقلي سپوږمۍ هغه څیز چې بنیادم جوړ کړے وي ـ او سپوږمۍ په شان رڼا ورکوي ـ
**سپوغان** :- (س+پو+غا+ن)(ق ـ اس ـ مذ) یو قسم ورکوټے بوټے دے ـ چې د پورینې په شان تېز بوي لري او سپین ګلونه کوي ـ
**سپوغز** :- (س+پو+غ+ز)(اس ـ مذ ـ ج ونه)د نامۀ ښکته او نر ښځې پټ ځاے نه بره حصه ـ سپوغز ـ سپوخڅه ـ سپخڅه ـ سپخزه ـ
**په ـــــ کښې دړد کېدل**:ـ اِص ـــ ډېر تهربدل (چاته)
**سپوغزه** :- ( س+پو+غ+ز)(اس ـ مو ـ ج ـ سپوغزے) (و ـــــ سپوغز)
**سپول** :- ( س+پو+ل) (ق ـ مص)ډېر زیات دستونه تلل ـ
**سپولے** :- (س+پ+و+لے)(ق ـ مذ) ډېر زیات په دستونو تللے ـ
**سپولے** :- (س+پ+و+لے)دا لفظ د "سبک" سره په طور د تاکېدل کلمې راځي ـ یعني سپاند ـ سپک سپولے ـ
**سپولے** :- (س+پ+و+لے)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـــــ لي)د اغزنو څانګو ګېډے ـ د اغزو پشتاده ـ
**سپومے** :- (س+پو+مے)(اس ـ مذ ـ ج :سپومي) پوپے ـ د څرمنې مشهور مرض ـ
**سپوڼ** :- (س+پو+ن+ڼ)(ق ـ مذ ـ ج:سپونونه)(۱) هجا ـ (۲) هغه خله چې د دوو پټو په مینځنۍ پوله کښې جوړه شوې وي ـ
**سپوښول** :-(س+پو+ن+ړ+و+ل)(ق ـ مص)و ـــــ سپېښول
**سپوڼے** :- (س+پو+ن+ړے) (اس ـ مذ ـ ج ـ سپوڼي)د څرمنې یوه بیماري چې څرمن پکښې سخته شي او سخت خارښت او کهه کوي ـ داد ـ
**سپون شوے** :- اِص ـــ سنګارلے ـ اراسته شوے ـ
**سپونګے** :- (س+پو+ن+ګے)(ب اس ـ مذ ـ ج :د سپوږمۍ رڼا)
**سپونے** :- (س+پو+نے)(اس ـ مذ) یو قسم چینجے ـ سپونے ـ
**سپوونکے** :- (س+پ+و+ن+کے)(ق ـ فاع ـ مذ)ډېر زیات په دستونو شوے ـ
**سپونېدل** :- (س+پو+ن+ړېے+د+ل) (ق ـ مص) و ـــــ سپېښېدل ـ

**سپه** :- (س+پ+ه) (ف ـ اس)د سپاه مخفف دے ـ
**ـــــ سالار**:- (سا+لا+ر)(ف ـ اس ص ـ مذ) د فوځ سردار ـ سر لښکر ـ
**ـــــ سپه سالري**:ـ(سا+لا+ری)(ف تر ـ مو ـ ج :ئ)د فوځ د سرداری کار ـ د سر لښکر جرنېلي ـ
**ـــــ ګري**:- (ګ+ری)(اس ـ مو ـ ج ـ ګرئ)د سپاهي کار ـ یا پېشه ـ د جنګ فن
**سپهار** :- (س+پ+ها+ر)(و ـــــ څپهار)
**سپهر** :- (س+پ+ه+ر)(فا اس ـ مذ)د سه پهر مخفف دے ـ یعني دریم پهر (پار) وخت ـ د غرمې نه وروستو وخت ماسپښین ـ
**سپهر** :- (س+پ+ه+ر)(ف ـ اس ـ مذ) اسمان هسک ـ فلک ـ

که ناسازې د سپهر ودشهاب کښم (خوشحال)

**ـــــ افرین**:- (آ+ف ري+ن)(ف تر ـ اس ـ مذ)اسمان پېدا کوونکے ـ خداے پاک ـ (په پښتو کښې په اخره کښې نون غنه نه استعمالېږي ښکاره نون وئیلے شي)
**سپهر برین** :- (س+پ+ه+ر+ے+ب+ري+ن)(ف تر ـ اس ـ مذ)د ټولونه اوچت اسمان (په پښتو کښې په اخره کښې نون غنه نۀ راځي ځکه ښکاره نون سره وئیلے شي)
**سپۍ**:- (س+پ+ی)(اس ـ مو)(۱) تانیث (و ـ سپے) (۲) ډېره بدکاره ښځه
**سپیئز** :- (س+پ+ئ+ز)(پ ـ صف)هغه څیز چې تعلق ئې سپېې (صدف) سره وي سپیئیز ـ
**سپے** :- (س+پے)(اس ـ مذ ـ ج:سپي ـ سپیان ـ مو سپۍ)(۱) مشهور ځناور ـ سګ (اردو ـ کتا) (۲) په ارټ کښې یو وړوکے شان اړم چې ارټ واپس ګرځېدو ته نه پرېږدي دغه شان یو پرزه په ګړۍ کښې هم وي ـ (۳) مجازاً ـ حرصي ـ مرصناک سړے ـ (۴) مجازاً ـ بدخویه جنګ اس فساد ته هر وخت تیار سړے ـ (۵) بې عزته ذلیل او بې وقره سړے د ټوپک یوه پرزه ـ عموماً ورته کوترے وائي ـ (۶) هغه سړے (څوکیدار وغېره) چې څوک دننه تللو ته نۀ پرېږدي ـ
**ـــــ د ښځاړ**:- ښنجار په غور بند کښې د یو ځاے نوم دے چې نمر پرې نۀ لګي ـ چې نمر راوخېژي نو ددغې پس ورته غاپي ـ (و ـــــ سپے د کالۀ)
**ـــــ د کالا**:- کالاصوابۍ سره(د مردان په ضلع کښې) د غره په لمن کښې یو کلے دے چې نمر پکښې لږ ساعت د پاره ښکاره کېږي ـ متل ورپورې جوړ شوے دے ـ چې د کالۀ سپے دې یو وخت ډوډۍ خوري ـ (و ـــــ سپے د ښنجار)
**(څوک) ـــــ کول**:ـ اِص ـ سپکول ـ د سپي په شان سپک ګڼل ـ
**ـــــ کېدل**:ـ اِص ـ د سپي په شان خوئي کول ـ سپي خویه کېدل ـ حرص کېدل ـ
**ـــــ ګڼل**:ـ اِص ـــ سپک ګڼل ـ بې وقره ګڼل ـ ذلیل ګڼل ـ "سپے هم نۀ ګڼل" هم وائي ـ
**سپے** :ـ د چا سره نۀ غېږېدل : مخ طبع نۀ لګېدل (چاسره) لکه فلاني سره زما سپے نۀ غېږېږي ـ
**سپے** :ـ ئے د مخه نۀ شرمېږي ـ ډېر سپک او بې وقره سړے دے ـ
**سپے** :ـ په مړ سپي زړۀ بدول ـ په نۀ څۀ خبره زړۀ بدول او ے پېدا اول په ډېره معمولي خبره خفګان پیدا کول ـ
**داوبو ـــــ**:ـ اِص ـــ د اوبو یو ځناور چې سر ئې د سپي وي او نور وجود ئې د کب په شان وي ـ
سګلا هو ـ سګلاهو ـ د سپي څرمن په مخ اچول ـ مخ ځان بې شرمه کول ـ د بې شرمۍ یاد بې غېرتي کار کول ـ ې حیا کېدل ـ بې شرمه کېدل ـ
**د عدلت ـــــ**:ـ اِص ـ د عدالت چپړ اسي وغېره چې بې رشوته هېڅ کار نۀ کوي ـ

**لېونے**:- اِص ـ (۱) هغه سپے چې لېونے شوے وي ـ (۲) مجازاً هغه سړے چې خوا مخوا چا ته بد رد څۀ وائي ـ یا جنګ جګړه کوي ـ

**د سپو ښکار**:- اِص ـ هغه ښکار چې د ښکاریانو سپو په ذریعه کولے شي ـ زموږ ملک کښې عموماً د سپو یو خاص قسم چې تازے بللے شي ـ ساتلے او پکار ولے شي ـ

**سپے** :- د سپو غپا ده (یعنې سپي لګیا دي چا پسې غاپي ـ د اوبو غېرو خلقو یا د غلو ډاکه مارو د راتلو نخښه ګڼلے شوه ـ

**سپے** :- د سپو لنبول:سپے هڅې هم پلیت وي ـ خو چې لوند شي پلیتي ئې لا زیاته شي ـ مطلب دا (داسې) کار کول چې څۀ فائده ئې نۀ وي ـ (متل) د خان نوکري د سپو لنبول دي ـ

**سپی** :- (س+پی) (۱) د "سپے" اضافي شکل دے ـ لکه "د سپي لکی" ـ (۲) د "سپے" جمع ده ـ

**ـــ توب**:- اِص ـ د سپي په شان خوئي ـ ډېر حرص ـ

**سپی** :- **ـــ توب کېدل**:- اِص ـ د سپي په شان خوئي یا کار کول ـ ډېر حرص کول

**ـــ تورے**:- (س+پی+تو+ر) (صف ـ ج ـ توری) د سپي په شان عادتونه لرونکے ـ فضول سړے ـ

**سپے** :- خسي کول ـ ډېر ذلیل او سپک کار کول ـ

**سپے** :- قینچي کول ـ (۱) ډېر زیات حقیر او ذلیل کار کول ـ (۲) ډېر خوار او مفلس کېدل ـ (۳) ډېره زیاته شومتیا کول ـ

**سپے** :- کړے کول (د چانه) د چانه سپے شړل ـ څوک د سپو د چیچلو نه بچ کول ـ

**سپے** :- سپے مخے (س+پی+م+خے) (پ تر ـ صف ـ مذ ـ ج ـ مخے) (۱) د سپے په شان مخ لرونکے ـ (۲) مجازاً ـ بې حیا ـ بې شرم ـ بې حیا ـ سپک ذلیل ـ

**سپے** :- سپي هرګو (س+پی+م+ر+ګو) (ق اس ـ جم) د سپو یو مرض چې پکښې سپي مړۀ کېږي ـ

**سپے** :- د بل په ښادی کښې سپي شړل ـ نا بللے په یوه موقع کښې ځان ورګډول ـ

**سپي** :- د ـــ پوست په مخ غورځول :مخ ـ د سپ څرمن په مخ اچول ـ بې حیا کېدل ـ بې شرمه کېدل ـ

**سپي** :- **ترـــ لکی خوار**:- اِص ـ ډېر زیات خوار ـ مفلس ـ نادار ـ

**سپي** :- **دـــ تر لکی لاندې عمر تېرېدل**:- مخ ـ ډېر بد او بې عزته یا خوار عمر تېرول ـ

**دسپي څرمن په مخ اچول** :- ځان بې شرمه کول ـ بې حیا کېدل ـ د چا لحاظ پاس نه کول ـ

**دسپي دلکی نه خوار** :- اِص ـ (و ـــــ د سپي ته لکی خوار)

**دسپي زوئے یا بچے** :- اِص ـ کنځل دي ـ واحزاده ـ

**سپي ژړا** :- اِص ـ ځینې وخت چې سپے یواځې وي نو داسې اواز او باسي لکه چې ژړا ئې په توهماتو کښې د (ژړا) سپېره ګڼلے شي ـ

**دسپي عمر**:- اِص ـ لکه چې سپے چا کره یا د چا مخې له ورشي نو په کانې وغېره ئې ولي ـ مجازاً د بې عزتی عمر ـ د ذلت عمر ـ

**د سپي لکی**:- اِص ـ وائي چې د سپي لکی چا سل کاله په نچه کښې کښېښودله چې راوویستله نو هغه شان کږه وه ـ د هغې سړي په حقله وئیلے شي چې د هغه عادت او خوئي نۀ بدلېږي ـ

**سپے** :- د سپي ماغزۀ (ماغزۀ ئې خوړلي دي ـ کم سړے چې بې خرته ډېرې خبرې کوي او سترے کېږي نۀ او طنزاً د هغه په حقله وئیلے شي ـ

**سپے** :- دـــ لېوني سپي عمر:- اِص ـ (۱) سپے چې لېونے شي نو خلق ئې زر ته زره اووژني ـ (۲) مجازاً ـ د هغه سړي په حقله وئیلے شي چې د بې عزتی ژوند تېروي د هر چا بدي شي ـ (۳) لنډ عمر ـ (خصوصاً د بدکاره سړي)

**سپیازول**:- (س+پ+یا+ز+ول) (مص) پیازول ـ د مادۀ ځناورنه اوم بچے پریوتل حمل ساقط کېدل ـ

**سپیازونه**:- (س+پ+یا+ز+ؤ+ن) (حمص) پیازونه ـ د حمل ساقط کېدنه ـ اوم بچے غورځونه ـ

**ســـپیازوونکے** :- (س+پ+یـا+ز+ؤ+ن+کے) (فـا ع ـ مـذ ـ ج :ســپیازوونکي ـ مو :سپیازوونکې) اسقاط حمل کوونکے ـ

**سپیازه** :- (س+پ+یا+ز) (صف ـ مو ـ ج ـ سپیازې) پیازه ـ هغه ماده ځناور یا ښځه چې د ګېډې بچے ئې اوغورځېږي ـ (حمل ئې ساقط شوے وي) ـ

**سپیازېدل** :- (س+پ+یا+زې+د+ل) (مص) پیازېدل ـ پیازه کېدل ـ د ځناورو یا د ښځې د ګېډې بچے غورځېدل ـ حمل ساقط کېدل ـ

**سپیازېدنګ** :- (س+پ+یا+زې+د+ن+ګ) (ق ـ حمص) (و ـــ سپیازېدنه)

**سپیازېدنه**:- (س+پ+یا+زې+د+ن) (حمص) د ګېډې د بچي غورځېدنه ـ د حمل ساقط کېدنه ـ پیازه کېدنه ـ (و ـــ سپیازېدنه)

**سپیاکه/څپیاکه** :- (+پ+یا+ک) (اس ـ مو ـ ج :سپیاکې) تپلې شوې سوټې چې اوچې کړے شوې او د خشاک په طور استعمالېږي ـ تیپی ـ تپی ـ څپیاکه

**سپیاکه/څپیاکه**:- سپیاکه/سپیاکې/څپیاکه تپل :ـ اِص ـ (۱) سُوټې تپل ـ د څاروود سوټو نه غونډارې یا ککورې جوړول چې د بلولو د پاره اوچ کړے شي ـ (۲) سپک کار کول ـ

**سپیاکه/څپیاکه**:- د دېوال د سر :ـ اِص ـ ډېر سپک بنیادم ـ ذلیل او بې وتره سړے یا ښځه

**سپیتانه** :- (س+پ+تیا+ن) (صف ـ مذ) (۱) د سپي عادت ـ د سپي په شان حرکات کول ـ حرص ناک ـ (۲) ذلّت ـ کمینه توب ـ بې غېرتي ـ

**سپیتکی** :- (س+پی+ت+ک+ئ) (اس ـ مو) سپنده هغه سپین پوډر چې ښځې ئې په مخ مږي ـ

**سپیتوب** :- (س+پی+تو+ب) (اس ـ مذ) (و ـــ سپیتانه)

**سپیته** :- (س+پی+ت) (اس ـ مو ج ـ ي) (۱) سلائي ـ د (ودلوړوکے سیخ) (۲) پانه ـ شپیتے ـ شپیشتے ـ سپیته ـ (۳) هغه لرګے چې څوکه ورله جوړه شوې وي

**سپیته** :- (س+پی+ت) ق (اس ـ مو ـ ج ـ ي) (۱) کاره ـ د بندي خانې سکنجه ـ د زندان شکنجه ـ (۲) عذاب ـ تکلف ـ

**ـــ کول**:- (ق) تکلیف ورکول ـ په عذاب کول ـ ربړول ـ شپېته کول

**سپېټه** :- (س+پي+ټ) (حرف) (۱) هېڅکله نه ـ مړي هم نه ـ (۲) ټول ـ همه ـ

**سپېځ** :- (س+پي+(د) ز) هغه څیز چې تعلق ئې سپېی (صدف) سره وي ـ د سپېئیز مخفف دے ـ

**سپېځ** :- (س+پي+(د) ز) (صف) صفا ـ سوچه ـ خالص ـ

**سپېځل** :- (س+پي+(د) ز+ل) (مص) صفا کول ـ خیره کوټ ایستل ـ

**ســپېځلتوب** :- (س+پي+(د) ز+ل+تـو+ب) (۱) پـاګیزګي ـ صـفائي ـ (۲) د ښـو اخلاقو لرنه ـ پاک لمنې ـ

**سپېځلتیا** :- (س+پي+(د) ز+ل+ت+یا) ـــ سپېځلتوب ـ

**سپېځلے** :- (س+پي+(د) ز+لے) (اس ـ فا ـ ج :سپېځلی) صفا ـ پاکیزه ـ بالکل ـ کره چې کوټ پکښې نه وي ـ سره ـ سوچه ـ

**ـــ پښتو**:- اِص ـ پاکه او صفا پښتو ـ چې پکښې د بلې ژبې یا ګران ګران

ټکي نه وي۔
**ـــــ کول**:۔ صفا کول۔ سوتره کول۔ ښکلے کول۔
**سپېڅونکے** :۔(س+پې+(د)ز+و+ن+کے)(اس فا۔ ج۔ کی)صفا کوونکے۔ پاکوونکے۔ پاکیزه کوونکے۔
**سپېڅېدل** :۔(س+پې+(د)زې+د+ل) (مص)صفا کېدل۔ پاکیزه کېدل۔ خیره کوټ وتل۔ سره کېدل۔
**سپېڅېدنګ**:۔ (س+پې+(د)زې+د+ن+ګ)و ـــــ سپېڅېدنه۔
**سپېڅېدنه**:۔(س+پې+(د)زې+د+ن) صفا کېدنه۔ پاکیزه کېدنه۔
**سپېڅېدونکے** :۔ (س+پې+(د)زې+دو+ن+کے)(اس۔ فا۔ مذ۔ ج:کی) صفا کېدونکے۔ پاکیزه کېدونکے۔
**سپیچ** :۔ (س+پي+چ)(انګ۔ اس۔ مذ۔ ج۔ ونه)تقریر۔ خطبه۔
**ـــــ کول**:۔ تقریر کول۔ خطبه ورکول۔
**سپېڅ** :۔ (س+پې+څ)(ص۔ مذ)و ـــ سپېڅ۔
**سپېڅننه** :۔ (اق)(س+پې+(ت)س+غ+ن+ن)(اس مو) اصلاح کول۔ پاکول۔ او درستول۔ (د تهذیب د پاره نوے لفظ)۔
**سپېڅل** :۔ (س+پې+څ+ل)(مص مت)و ـــ سپېڅل۔
**سپېڅلتوب** :۔ (س+پې+څ+ل+تو+ب)(حمص۔ مذ) (و ـــــ سپېڅلتوب)
**سپېڅلتیا** :۔ (س+پې+څ+ل+ت+یا)(حمص۔ مو) و ـــ سپېڅلتوب۔
**سپېڅلنه**:۔(س+پې+(ت)س+ل+ن) (حمص)پاکوالے۔ سوتره والے۔ سپېڅلتیا۔
**سپید**:۔ (س+پي/پې+د)(ف۔ صف)سپین۔ سپین رنګے۔ سفید۔
**ـــــ بالا**:۔ (با+لا)(ف تر۔اس۔مذ)صبح کاذب۔ د شپې نه پس اولنۍ رڼا۔ چې وروستو غیبه شي۔
**ـــــ بخت**:۔ (ب+خ+ت) (ف تر۔ صف) (مو۔ بخته) نېک بخت۔ د ښهٔ بخت خاوند
**ـــــ پارے**:۔ (پا+رے)(ف تر۔ صف) مبارک قدمونو واله۔
**ـــــ پر**:۔(پ+ر)(ف۔ تر۔ اس۔ مذ)ماشے۔ پشه۔
**ـــــ پوستے**:۔ (ـــ پو+س+تے)سپین پوستے۔ سپینې څرمنې واله۔ سپین رنګ واله
**ـــــ پهنا**:۔ (پ+ه+نا)(ف۔ تر۔ اس۔ مذ) صبح صادق هغه رڼا چې د صبح کاذب (سپید بالا) نه وروستو پېدا کېږي۔
**ـــــ جامه**:۔(ـــ جا+م)(ف تر۔ اس)(۱) هغه کس چې سپینې جامې ئې اغوستې وي۔ سفېد پوش۔ عزت مند سړے۔ (۲) (ف) اتش پرست۔ ـــــ دست:۔ (د+س+ت) (ف تر۔ اس۔ مذ)(۱) هغه کس چې سپین لاس لري۔ د حضرت موسیٰ علیه السلام لقب۔ سپین لاسے اصلاً د ید بیضا ترجمعه ده۔ (۲) سخي۔ سخاوت کوونکے۔
**سپیدار** :۔ (س+پي+دا+ر)(اس۔ مذ۔ ج۔ ونه) د ونو یو قسم۔ د چنارونو یو قسم سفېده۔ سفېدار۔
**سپېدل**:۔ (س+پې+د+ل)(و ـــــ څپېدل)
**سپېدلتیا**:۔(س+پې+د+ل+ت+یا)(حمص)(۱) سپېدي۔ سپین والے۔ (۲) صفائي۔ سپین زړتوب۔ اخلاص۔
**سپېدلتیا**:۔(س+پې+د+ل+ت+یا)
**سپېدلتوب** :۔ (س+پې+د+ل+تو+ب)(حمص)سادګي۔ ساده دلي۔ ساده توب۔ کم عقلي۔ شوده توب۔
**سپېدلنه**:۔(س+پې+د+ل+ن) (حمص)سپېدلتیا۔ سادګي۔ ښهٔ زړهٔ والے۔
**سپېدلے**:۔ (س+پ+د+لے)(اس۔ صف مذ۔ ج۔ لي)(۱) صاف زړے۔ سپین زړے۔ صاف نیته۔ اخلاصي۔
**مسلسل**:۔ (صف)(۱) ساده لوح۔ ساده باده سړے۔ کم عقل۔ پاڼې۔
**ســپېدو داغ**:۔ (س+پې+دو+دا+غ)(اق۔ مذ)سحر صبا۔ سپېدے۔ چاؤد۔ چربانګ۔
**سپېده**:۔ (س+پې+د)(اس مو)(۱) سپین رنګ۔ سفېد(۲) سپېدار۔ (ونه) (۳) د سحر رڼا۔
**سپېده**:۔ (س+پې+د)ـــ دم:۔( د+م) ـــ دمان:۔(د+ما+ن)(ف تر۔ اس۔ مذ)
**سپېدے** :۔ (ق) (س+پې+د+ے)(اس۔ مذ۔ ج۔ ی)شفق۔ د افق سرخي۔
**سپېدۍ**:۔ (س+پې+دۍ)(ف۔ اس۔ مو۔ ج۔ ی)(۱) سپین والے۔ سپین رنګ۔ (۲) په دیوالونو وغېره چونه لګول یا پېنټ (رنګ) سپینول۔ (۳) د صبح صادق رڼا۔ د سحر رڼا۔
**سپېدۍ** :۔ـــ چاود:۔ (چا+و+د)(ق۔ اس۔ مذ) باړون۔ صباوون۔ سحروختي۔ چې ایله ایله رڼا راښکاره شي۔ صبح صادق۔ د رښتینې سحر د رڼا څرېکه۔ د صبح صادق رڼا۔ سپېده دم۔
**ـــــ کول**:۔ د کور (دیوالونو وغېره) له سپین رنګ ورکول۔ په چونه یا رنګ (پېنټ) ورکول۔ سپین رنګ ورکول۔
**سپیډ**:۔ (س+پي+ډ) (انګ۔ اس۔ مذ۔ ج۔ ونه) رفتار۔ تېزي۔ سرعت۔ په تګ کښې د تیزۍ مقدار۔
**سپیډومیټر** :۔ (س+پي+ډ+مي+ټ+ر)(انګ تر۔ اس۔ مذ۔ ج۔ ونه)هغه اله چې د موټر بس وغېره د تګ رفتار ښائي۔ د رفتار د معلومولو اله۔
**سپیډیومیټر** :۔ (س+پي+ډ+یو+مي+ټ+ر)(انګ تر۔ اس۔ مذ۔ ج۔ ونه)هغه اله چې د ګاډي وغېره رفتار پرې معلومولے شي۔
**سپېرغلے** :۔(س+پې+ر+س+لے)(اق۔ اس۔ مذ۔ ج:سپېرغلي)یو قسم شینکے چې د سپرلي په شروع کښې د غنمو په فصل کښې پېدا کېږي۔
**سپېرخوټ** :۔(س+پې+ر+خ+و+ټ)(اق۔ اس۔ مذ)ورکوټے تریخ بوټے چې سپین ګلونه لري۔
**ســپېرخولے** :۔ (س+پې+ر+خو+لے)(صف۔ مذ۔ ج:لی)هغه چې د خولې نه سپېرې خبرې اوباسي۔ ښېرې۔ بد دعاکوونکے۔
**سپېرخے** :۔(س+پې+ر+خے)(و ـــــ سپېرخ)
**سپېر** :۔ـــ **غونے**:۔(غو+نے)(و ـــ سپېروونے)
**سپېرکونډکه** :۔ (س+پې+ر+ک+و+ن+ډ+ک)(اس۔ مو)(و ـــ سپېرکونډه۔
**سپېرکونډه** :۔ (س+پې+ر+ک+و+ن+ډ)(اس۔ مو۔ ج:سپېرکونډې)(۱) ټوپازن۔ یوه مرغۍ ده چې د چڼ چڼې نه لږه لویه وي۔ اؤ په سر ئې تاج وي۔ (۲) خراړه۔
**سپېرکي**:۔ (س+پې+ر+ک+ی)(اس مو)مشهور خوشبودار تخم /اردو:(جوائن) مسالو کښې هم استعمالېږي۔ او په دارو کښې هم۔
**سپېرکے** :۔ (س+پې+ر+کے)(صف۔ مذ۔ ج۔ کی)نرے نروچکے۔ مانده ډنګر
**سپېرکے**:۔ (س+پې+ر+کے)(صف۔ مذ۔ ج:کی۔ مو۔ کۍ)د سپېرهٔ تصغیر۔ سپېرهٔ۔ منحوس۔
**سپېرګل**:۔ (س+پې+ر+ګ+ل)(مص)(۱) کنځل کول۔ ښکنځل کول۔زیاړې کول۔ (۲) خرابه خوله خوځول۔ بد زباني کول۔
**سپېرګلے**:۔(س+پې+ر+ګ+لے)(اس۔ مف)(۱) کنځلے شوے۔ زیاړلے شوے۔ (۲) بد و رد وئیلے شوے۔ رټلے شوے۔
**سپېرګونکے**:۔ (س+پې+ر+ګ+وو+ن+کے)(اس۔ فا۔ ج۔ کی)کنځل کوونکے۔ زیاړې کوونکے۔

**سپېرګه**:- س+پې+ر+ګ(ق ـ اس ـ مو ـ ج:سپېرګې)(۱) کنځل ـ زیاړه ـ زیږه ـ (۲) ترخه یا سخته خبره ـ زورنه ـ ستغه خبره ـ

**ــــ کول**:- (مص)(۱) کنځل کول ـ زیاړه کول ـزیږه کول ـ (۲) ترخې خبرې کول چاته ـ زورنه ورکول ـ

**سپېرلټ**:-س+پې+ر+ل+ټ(صف ـ مذ ـ ج:لټان ـ مو :لټه ـ ج:لټې)(۱) په خاورو خړ (۲) سست (سړی) ـ (۳) ساده عاجز سړی ـ

**سپېر**:- لټ (ل+ټ)(په تر ـ صف) مذ ـ مو ــ لټه)لېونګړی ـ لېونساری ـ

**سپېر**:- لکې(ل+کې)(اس مذ ـ ج :لکي ـ لکۍ)د اس بچې چې تقریباً دوه کالیز وي ـ

**ــــ لم**:- (ل+م) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج:سپېر لمې ـ مو :سپېرلمې)د خړ رنګ لومبړ

**ــــ مخ**:- (م+خ)(صف ـ مذ ـ ج :مخې) (۱) هغه سړی چې مخ ئې سپور وي ـ سپور مخی ـ بې رونقه مخ واله ـ (۲) هغه سړی چې مخ ئې سپېرۀ وي ـ منحوس سړی ـ

**ــــ مرغه**:- (م+ر+غ)(ق ـ اس ـ جمع)یو قسم وابنۀ چې د څاروو خوراک دي ـ

**سپېر**:- ــــ مرغی:-(م+ر+غ)(صف ـ مذ ـ ج ـ مرغی)بدنصیبه ، بدقسمته سړی

**مرغی**:-(م+ر+غی)(ق ـ اس ـ مذ)په بیګار (تړکه) کښې د غوړو کمې ـ هغه غوړي چې د ښورو د پاسه ښکاري ـ

**سپېرنی**:-(س+پې+ر+نی)(ق ـ اس ـ ج ـ نۍ) یو قسم بوټی دے ـ خړ رنګې ـ وړې وړې پاڼې لري د ګل په ځاے پندک نیسي ـ

**سپېرونی**:-(س+پې+رو+نی)(اس ـ مذ ـ ج ـ سپېروني)هغه خشکي چې د غنمو د اوړو په سر پیدا کېږي خانګره ـ پخه ـ

**سپېرونی**:-(س+پې+رو+نی)(اس ـ مذ ـ ج ـ نۍ)خشکي هغه اوړۀ چې په خمبیره اچوي چې د ډوډۍ د پخولو په وخت لوښي یا لاسونو سره نه نښلي ـ بوڼۀ ـ بوړنۀ ـ

**سپېرونی**:-(س+ پې + رو + نی)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ نۍ)یو قسم بوټی ـ د چائے دشتي ـ

**سپېروونی**:- (س+پې+ر+وو+نی)(اس ـ مذ ـ ج ـ نۍ)بوړنۀ ـ بروڼۀ ـ وچ اوړۀ چې پیړې پرې جوړولې شي ـ

**سپېرۀ**:- (س+پې+رۀ) (صف ـ وا ـ ج ـ مو ـ مذ)(۱) منحوس ـ سبز قدمه ـ (۲) په خاورو خړ ـ په خاورو لړلے ـ (۳) خړ رنګے ـ خاکي ـ (۴) تباه خونې ـ کوروانې ـ

**سپېرۀ**:- (۱) نحوست منحوسي (۲) خړ لړنه ـ (ق) (۳) تباهي ـ بربادي ـ (ق)

**سپېرۀ**:- هغه مېدان چې هېڅ سبزه بوټي پکښې نۀ وي ـ سپینه ډاګه ـ سپین مېدان چې پکښې هېڅ قسم اباد نه وي ـ

**سپېرلټ**:-(۱) په خاورو خړ ـ سست پست سړی ـ (۲) عاجز ـ خوار ـ ساده ـ

**سپېرۀ کول**:- (۱) په خاورو خړ کول ـ په خاورو لړل ـ د وړو نه ډکول ـ (۲) یو خاندان یا ټبر ببخي تباه کول ـ د کور مال اسباب هر څۀ وړل ـ (ق) (۳) خړ کول د خاورو په رنګ کول ـ (۴) منحوس کول ـ بدپالې ګرځول

**سپېرۀ کېدل**:- (۱) په خاورو خړ کېدل ـ په خاورو لړلے کېدل ـ (۲) د یو سړي ببخي تباه کېدل ـ (۳) د یو سړي د کور ټول مال اسباب لوټ کول ـ یا په غلا وړل ـ (ق)

**ــــ کېدل**:-(۱) د خاورې په رنګ کېدل ـ خړ کېدل ـ (۲) منحوس کېدل ـ

**سپېرۀ**:- ګهیځ(ګ+هی+ځ)(۱) سپېرۀ سحر ـ (۲) صبح کاذب (ق)

**ــــ والی**:- (وا+لی)و سپېرۀ توب ـ

**سپېریاریتې**:- (س/سو+پی+ری+یا+ر+تې) (انګ ـ اس ـ مو) اعلیٰ درجه والے ـ غوره والے ـ زیات ښۀ والے ـ فوقیت ـ تفوق ـ فضیلت ـ سبقت ـ

**سپېریر**:- (س+پې+ر+ي+ر)(انګ ـ صف)(۱) د ټولو نه اعلیٰ یا غوره ـ ډېر اعلیٰ ـ د اعلیٰ درجې ـ (۲) رئیس ـ د لوئې عهدې خاوند لوے افسر ـ

**سپېړه**:- (س+پې+ړ) (و ــــ څپېړه)

**سپېزل**:- (س+پې+ز+ل)(و ـ سپیځل او د سپیځل سره تړلي الفاظ)

**سپېږ**:-(س+پې+ګ+ژ)د سپېږمه مخفف ـ نورو الفاظو سره راځي ـ لکه سپېږماټو ـ

**سپېږماټو**:- (ما+ټو)(و ــــ سپېږمه ټو)

**سپېږمو**:- (س+پې+ګ/ژ+مو)(پ ـ ج)د سپېږمې مجروري یا اضافي حالت ـ په مرکباتو کښې راځي ـ لکه تر سپېږمو یا د سپېږمو ـ

**تر ــــ راتلل**:-(۱) ډېر زیات په تنګ راتلل (دچانه) تر پوزې راتلل ـ (۲) ډېر زیات خوراک کول ـ

**تر ــــ راوستل**:- ډېر زیات تنګول ـ

**تر ــــ کېدل**:- د څۀ څیز بوي پوزې ته رسېدل ـ

**تر ــــ مړېدل** یاډکېدل:- ډېر زیات مړېدل ـ ډېر زیات خوراک کول ـ چې نه شي خوړے ـ

**سپېږمه**:- (س+پې+ږ/ژ+م)(اس ـ مو ـ ج ـ مې) د پوزې سورے ـ سپږمه ـ سږمه ـ

**ــــ ټو**:- (ټو)(پ ـ صف ـ مذ)هغه کس چې د پوزې سپېږمې ئې ارتې او لوئې وي ـ ارتو وسپېږمو واله ـ

**سپې ستورے**:- (س+پ+ي+س+تو+رے)(ق ـ اس ـ ص ـ مذ) فضول او بېهوده سړے ـ

**سپیسته**:-(س+پې+س+ت)(اس ـ مو ج ـ تې) پانه ـ سپېته ـ شپیتې ـ شپیشتې

**سپیسکے**:-(س+پې+س+کے)(ق ـ مذ)یو قسم پلن بوټی چې په پسرلي کښې راټوکېږي ـ

**سپېشل** (س+پې+ش+ل)(انګ ـ صف) خاص ـ مخصوص ـ

**سپېشلائز**:-(س+پې+ش+لا+ئ+ز)(انګ ـ مع)په څۀ خاص فن یا علم کښې مخصوصیت یا مهارت حاصلول ـ

**سپېښته**:- (س+پې+ښ/ش+ت)(اس ـ مو ـ ج ـ تې) (۱) هغه نرۍ پرده چې زړۀ نه چاپېره وي ـ (۲) د ګېډې پرده ـ

**سپې غود**:-(س+پې+غو+د) (ق ـ اس ـ مذ)یو قسم لویه ګیاه ده چې د لویو لویو ګټانو وبخ کښې پیدا کېږي ـ سپین ګلونه کوي او ډېره زر مړاوي او اوچه شي ـ ماشومان ئې خوري ـ

**سپېغول**:- (س+پې+غو+ل)(اس ـ جم)مشهور بوټی او تخم ئې ـ چې په دوایانو کښې عام استعمالېږي ـ په شربتونو کښې هم اچولے شي ـ السبغول ـ اسپغول ـ

**سپېکټرم**:- (س+پې+ک+ټ+ر+م)(انګ ـ اس ـ مذ)هغه خاص غټه شیشه چې د رڼا رنګینه شعاګانې پرې لیدے شي ـ

**سپیکر**:- (س+پې+ک+ر)(انګ ـ اس ـ ج ـ ان)(۱) تقریر کوونکے ـ خطبه ورکوونکے خبرې کوونکے (۲) د اسمبلۍ صدر ـ د قانون ساز ـ مجلس یا د پارلېمنټ صدر

**ــــ لاؤډ**:-(لا+ؤ+ډ)(انګ ـ تر ـ اس ـ مذ)هغه اله چې عام اواز پرې راوچتولے او په زوره کولے شي ـ

**سپېګانه**:- (س+پې+ګا+ن)(حمص)د سپي په شان عادت یا عادتونه سپېتوب ـ سپېتانه ـ رذالت ـ کمینه پن ـ حرص ناکي ـ

**سپېګۍ** :- (س+پې+ګۍ)(و ـــ سپائيګۍ)

**سپېل** :- (س+پې+ل)(ف ـ اس ـ مذ)(۱) شپېلے ـ (۲) د مرغۍ ـ اواز ـ

**سپېلنے** :-(س+پې+ل+نے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ني) (۱) يو خود رو بوټے چې خلق ئې اوچ کوي او بيا ئې مريض يا د نظر ماتي د پاره لوګے کوي ـ ددې بوټي تخم هم په دې غرض استعمالولے شي ـ (۲) د انګورو غوشه ـ (وزير)

**ـــ دُودول** :ـ اِص ـ و ـــ سپېلنے لوګے کول ـ

**ـــ کېدل** :ـ (چانه) اِص ـ د محبوب وغېره نه داسې قربانېدل ـ لکه چې د سپېلني بوټے يا تخم په اور کښې سوځي ـ مطلق قربانېدل ـ ستي کېدل

**ـــ کول** :ـ اِص ـ سپېلني لوګے کول ـ

روغ به نۀ شې بې له يار له ښه دېدنه
که سل پنډه سپېلني وځان ته لو کړې (رحمان)

**ـــ سپېلني لوګے کول** :ـ (چاته) اِص ـ (۱) د سپېلني اوچ کړي بوټي يا ئې تخم په انګار کېښودل ـ چې بلېږي نه او لوګے کوي ـ دا عموماً د نظر ماتي د پاره کولے شي ـ يا د مريض د کوټے د جراثيمو د وژلو د پاره ـ (۲) نظر ماتول ـ د نظر د لګېدونه بچ کول ـ

**ـــ لېونے سپېلنے** :ـ اِص ـ (۱) ډېر زيات لېونے ـ قطعي لېونے ـ (۲) مجازاً د يو ځيز بې کچه زيات مشتاقه کول ـ مئينول ـ ډېر سخت عاشق کول ـ

**ـــ لېونے کېدل** :ـ اِص ـ (۱) ډېر زيات لېونے کېدل ـ په قطعي لېونے کېدل ـ (۲) مجازاً ډېر سخت مشتاقه کېدل ـ يا مئينېدل ـ سخت عاشق کېدل

**ـــ لېونے ګرځېدل** :ـ اِص ـ ببخي د لېونو په شان په بد حال ګرځېدل ـ

**سپېله ننګه** :-(ق)(س+پې+ل+ن+ن+ګ)(پ تر ـ مو ـ ج ـ ې) د چا مرسته يا پره ـ

**سپے مخے** :-(س+پے+م+خے) (اس ص ـ مذ ـ ج:سپي مخے ـ مؤ: سپۍ مخې) بې حيا او بې شرمه سړے ـ

**سپي مرګو** :- (س+پ+ي+م+ر+ګو)(اس ـ مو)سپي د مرګي بيماري ـ

**سپېمه** :- (س+پې+مۀ)(اس ـ مو ـ ج:سپېمې)(۱) هغه سپۍ چې ګرمه شوې وي ـ يعني چې وار ئې راؤړے وي ـ (۲) مجازاً بد چلنه ـ زنا کاره ښځه ـ د (کنځلو په طور وئيلې شي)ـ

**ـــ کېدل** :ـ اِص ـ د سپۍ وار راؤړل ـ د سپۍ ګرمېدل ـ

**سپين** :- (س+پي+ن)(اس مع)د ترينو په څلورو قبيلو کښې د يوې قبيلې نوم دے چې عموماً په پشين لورالائي او بستي کښې استوګنه لري ـ د دوي ځيني خلق په هزاره (صوبه سرحد کښې هم اباد دي) ـ د دوي مشهورې څانګې دادي ـ لاسياني اډواني ، وينچي ، سيماني ، رئيساني ، زام ، مارپاني ، او ملګرائي ، او مخياني) ـ

**سپين** :- (س+پي+ن)(صف ـ مذ مو:سپينه ـ ج سپينے) (۱) سپېد ـ سفېد ـ (۲) هغه ځناور (عموماً ، چرګه مرغۍ وغېره) چې ښې ترې اوښکلې شوې وي ـ هغه مېوه چې يو پاستکے ترې لرې کړے شوے وي ـ سپين کړے يا سپين شوے ـ (۳) د اګۍ په مينځ کښې سپين رنګې غونډې ماده ـ چې د زيړ په مقابله کښې وي ـ (۴) په سترګه کښې سپين رنګے ځاے (د تور په مقابله کښې) ـ (۵) په زړۀ صفا مخلص ـ (۶) بې داغه ـ چې داغ نۀ لري ـ مجازاً پاکباز (۷) سپينه ـ د پښتنو د زنانۀ نوم ـ

**ـــ ازغے** :ـ (ا+ز+غے) ـــ اغزے :ـ(ا+غ+زے)يو قسم سپين بخن شان بوټے چې د کلو خلق پرې جامې وينځې ـ

**ـــ باز** :ـ(با+ز)(اس ـ مو ـ ج ـ ونه)(۱) تيغون ـ سپين رنګے باز ـ د بازيو غوره قسم ـ (۲) بې عېبه ـ بې داغه ـ مجازاً بې وېرې ـ ډرې ـ پاکبازه رښتونې ـ

**ـــ ګرځېدل** :ـ اِص ـ مجازاً بې پروا ګرځېدل بې وېرې ډرې ګرځېدل ـ (عموماً داسې سړي په حقله وئيلے شي چې بې قصوره وي)

**ـــ بحر** :ـ اِص ـ بحيرۀ ابيض ـ سپين سمندر ـ

**ـــ بوټے** :ـ (بو+ټے)(و ـــ سپين (زغے)

**ـــ پاځۍ** :ـ (ق) )پا+(ت) س+ۍ)(اس مع)هغه جينۍ چې چنغول ئې په زور کور ته بوځي ـ

**ـــ پائځه** :-(پا+ۍ+(ت) س)(ق پ تر ـ صف ـ مو ـ ج ـ پائځے)(۱) جينۍ چې لاوادۀ شوې نۀ وي ـ بکره (ق)(۲) مجازاً داسې جينۍ چې دوو سړو يا خاوندانو په مينځ کښې د جګړې باعث اوګرځي ـ (۳) پاکه ـ پاکبازه ـ (۴) هغه جينۍ چې د وادۀ د عام دود دستور او ډنګ ډونګ نه بغېر خاوند ته اوسپارلې شي ـ (ظفر)

**ـــ پګړے** :ـ(پ+ګ+ړے)سپين پټکۍ واله ـ عزتمند ـ مشر ـ سپين روبے ـ

**ـــ توب** :ـ (تو+ب)(۱) سپين والے ـ سپين رنګ لرنه ـ (۲) پاګيزګي ـ

**ـــ توري** :ـ (تو+ري)تحقيق ـ ثبوت ـ (ثبات(ق) ـ

**ـــ پرې کول** :ـ (ق)ثبوت وړاندې کول ـ په مدعي باندې ثبوت پېش کول ـ

**ـــ تيا** :ـ(ت+يا)(پ تر ـ مو ـ ج ـ ګانے /وے)(۱) سپين رنګ والے ـ سپين توب ـ (۲) صفائي ـ پاکونه ـ (۳) د څۀ معاملې په حقله دروغ او رښتيا معلومونه ـ رښتينولي ـ

**ـــ ټکرۍ** :ـ(ټ+ک+رۍ)هغه بد زبانه ښځه چې د دوو سړو يا دوو کورونو تر مينځه د دښمنۍ سبب اوګرځي ـ (ق)

**ـــ چوتار** :ـ(چو+تا+ر) (پ تر ـ مذ ـ ج:چوتارونه)سپين پټکے ـ سپينه پګړۍ ـ (چې د عزت نخښه ګڼلے شوه)

**ـــ خړے** :ـ(خ+ړے)(اس ـ مذ ـ ج:سپين خړۍ)د اوسپنې زنګ ـ او سپنخړے ـ

**ـــ خورے** :ـ(ق)(خو+رے) (اس ـ مذ)ګچ چې د تعمير په کار کښې استعمالېږي ـ

**ـــ سپين خولے** :ـ (خ+لے)(پ تر ـ مذ ـ ج ـ خولۍ) چې خوله ، يعني مخ ئې سپين وي ـ مجازاً ښکلے ، ښائيسته ـ

**ـــ دامن** :ـ اِص ـ سپينه لمن ـ بې داغه لمن ـ

دانا خوئي د ستار که پټوي عېب
ابلهان په سپين دامن داغ د تهمت ږدي (حافظ)

**ـــ دروبتيا** :ـ (د+رو+ب+ت+يا) سفېد پوشي ـ عزتمندي ـ

**ـــ دروبے** :ـ(د+رو+بے) (پ تر ـ مذ ـ ج ـ دروبۍ)سپينو جامو واله ـ سفېد پوش ـ دروند او عزت مند سړے ـ مشر ـ

**ـــ ډاګ** :ـ (ډا+ګ)سپين مېدان ـ داسې مېدان چې پکښې هېڅ قسم بوټے يا واښۀ نۀ وي ـ

**ـــ ډکۍ** :ـ (ډ+کۍ)د ږيرې سپين ويښتۀ ترې مراد دي ـ (دچا د سپينې ږيرې د لحاظ ياس په موقع وئيلے شي ـ

**ـــ روبے** :ـ (رو+بے)(و ـــ سپين روبے)

**ـــ زر** :ـ(پ تر ـ اس ـ جم)هغه زر چې سپين رنګ لري ـ چاندي د سرو زرو په مقابله کښې ـ

**ـــ زرلے** :ـ (ز+ر+لے)هغه سپين چې د سپينو زرو اوبۀ ورکړے شوې وي ـ

**ـــ زري** :ـ د سپينو زرو کار کول ـ

**ـــ زړۀ** :ـ(پ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ زړونه)هغه زړۀ چې سپين وي ـ يعني داغ نۀ لري ـ صفا زړۀ ـ پاک او بې بدو زړۀ ـ

**ـــ زړۀ** :ـ(ز+ړ)(ق ـ ص)(۱) سپين زړے ـ صفا زړۀ لرونکے ـ (۲) اوچه ډوډۍ ـ خشکه ډوډۍ ـ

**ـــ زړے** :ـ (ز+ړے)(پ تر ـ صف ـ مذ ـ ج ـ زړۍ)د سپين زړۀ خاوند ـ هغه سړے چې زړۀ ئې سپين يعني بې داغه ـ صفا زړۀ لرونکے نېک بې بدو ـ

مخلص چې په زړهٔ کښې تګې تورې نهٔ لري ـ

ـــــ **زړی**:ـ (ا ق) (۱) هغه تپوکے چې زمکه ئې سپینه وي او پاسه پرې زیړ ګلونه جوړ شوي وي ـ (۲) د سپینو زرو د پاسه د سرو زرو کار ـ

ـــــ **ږروکے**:ـ(ګ/ژ+رو+کے) (۱) د ګیاه یو قسم ـ (۲) د سپین ږیرې تصغیر ـ

ـــــ **ږیرے**:ـ(ګ/ږي+رے)(پ تر ـ مذ ـ ج ـ ږیرې)هغه کس چې ږیره ئې سپینه شوې وي ـ د سپینې ږیرې خاوند ـ مجازاً ـ مشر ـ بزرګ ـ

ـــــ **ږیرے کول**:ـ (ق)د چانه خپل مشر یا سردار جوړول ـ سپین ږیرے ـ

ـــــ **ږیرے کېدل**:ـ (۱) ږیره سپینېدل ـ زوړ عمر کېدل ـ بوډا کېدل ـ (۲) د قام قبیلے مشر جوړول ـ (ق)

ـــــ **ږیرے نیول**:ـ (ق)څوک د کلي یا د قام مشر جوړول ـ

ـــــ **ږر توب**:ـ(ګ/ژي+ر+تو+ب)سپین ږرتیا ـ د سپینې ږیرې عمر ـ زوړ عمر ـ بوډا والے ـ

ـــــ **ږیرتیا**:ـ (ګ/ژي+ر+ت+یا)

ـــــ **ږرتیا**:ـ (ګ/ژي+ر+ت+یا)د ږیرې سپېدنه ـ زوړ عمر (ته رسېدنه)

ـــــ **ږیروالے**:ـ (ګ/ژي+ر+وا+لے)

ـــــ **ږروالے**:ـ (ګ/ژي+ر+وا+لے) (وـــ سپین ږیرتیا)

ـــــ **سبا**:ـ (۱) سپین صبا ـ سپین سحر ، روښانه سحر ـ (۲) د مال اسباب نه خالي صفا ډاګه د لاملا جومات ـ

ـــــ **سبا درول** :- (ق)(وـــ سپین سبا کول)

ـــــ **سبا کول**:ـ (۱) سحر کول ـ (۲) د کورنه ټول مال اسباب په غلا یا په لوټ کښې وړل سپین مېدان کول ـ هېڅ نهٔ پرېښودل ـ

ـــــ **سبا کېدل**:ـ (۱) سپین صبا کېدل ـ د سحر رڼا کېدل ـ (۲) د کور ټول مال اسباب لوټلے کېدل یا په غلا تلل ـ صفا مېدان یا په غلا تلل ـ صفا مېدان پاتې کېدل ـ

ـــــ **سبیل الله**:ـ(ق)د کور ټول مال اسباب نه خالي کول کور سپین سبا کول

ـــــ **سپرغې**:ـ (س+پ+ر+غے)(اس ـ مذ ـ ج ـ سپرغې) مشهوره سبزي چې د ولو په غاړه پیدا کېږي ـ او کچه بې پخولو جوړولے شي ـ (ق)

ـــــ **سپېځلے**:ـ(س+پې+ځ+ز+لے)(پ تر ـ مذ ـ ج ـ سپېځلي)صفا سوتره ـ پاک ساک

دا تهٔ چې سپین سپېځلے ګرځې
رب دې مئین کړه چې خیرن دې ووینمه (ټپه)

(۲) بې داغه ژوند لرونکے ـ ، د ښو اخلاقو خاوند ـ

ـــــ **سترګے**(س+ت+ر+ګے)(پ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ سترګې) هغه سړے چې سترګې ئې سپینې وي ـ تور پکښې نهٔ وي ـ مجازاً بد لحاظ ـ بې حیا ـ بې شرمه ـ

ـــــ **سترګي**:ـ(س+ت+ر+ګي) بې لحاظي ـ بې حیائي ـ

ـــــ **سترګي کول** :ـلحاظ پاس نهٔ کول ـ بد لحاظي کول ـ بې حیائي کول ـ

ـــــ **سپین سحر** :ـ روڼ سحر ـ روښانه سحر ـ

پیا چې پلو واخلې په عاشق شي سپین سحر (خوشحال)

ـــــ **سر**:ـ(س+ر) (ص) چې د سرو وېښتهٔ ئې سپین وي ـ بوډا د لوے عمر ـ

ـــــ **سر توب**:ـ بوډا توب ـ پیرې ـ

ـــــ **سره**:ـ (ق)(س+ر) (اس ـ مذ ـ ج ـ ی) یو قسم اغزن (از صف) بوټے دے ـ چې سور رنګے ګل کوي ـ

ـــــ **سرے**:ـ(س+رے) (په تر ـ صف)هغه سړے چې د سر وېښتهٔ ئې سپن شوې وي ـ مجازاً زوړ ـ بوډا سړے ـ عموماً د زنانهٔ په حقله وئیلې شي یعنې هغه ښځه چې سر ئې سپین شوے وي ـ زړه یا مشره ښځه د سړي په حقله سپین ږیرے ـ ترکیب استعمالېږي ـ

ـــــ **شونډ خانی**:ـ(شو+ن+ډ+خا+نی)(ق ـ اس ـ جمع) یو قسم قندهاري سپین اوږدهٔ انګور ـ

ـــــ **شوے**:ـ(اس صف)هغه څیز چې پوست (پوستکے) ترې لرې کړې شوے وي ـ ـ (لکه مئین وغېره)

ـــــ **صبا**:ـروڼ سحر ـ سپین سحر ـ

ـــــ **غر**:ـ په پښتونخوا کښې د یو مشهور غر نوم دے چې تل پرې واؤرې پرتې وي ـ کوه سفېد ـ

ـــــ **غُونے**:ـ (۱) هر څیز چې سپین رنګ پرې غالب وي ـ سپین بخن ـ سپین ریشم (۲)هغه سړے چې رنګ ئې سپین وي ، سپینې څرمنې واله ـ

ـــــ **کب**:ـ شیر ماهي ـ

ـــــ **کت**:ـ بتا شیر (دوائي)

ـــــ **کړے**:ـ (ک+ړے) (اس صف) (و ـــ سپین شوے)

ـــــ **کشمش**:ـانګور ـ

ـــــ **شنې وکې**:ـ شنه مېوه ـ شنهٔ مویځ ـ

ـــــ **ککے**:ـ (ک+کے)سپینو ککو واله ـ سپین سترګې ـ بې حیا ـ بې شرمه ـ بد لحاظه ـ

ـــــ **کی**:ـ(کی) هغه خلق چې رنګ ئې سپین وي ـ سپینې څرمنې واله ـ یورپین

ـــــ **ګوتے**:ـاص ـــ چې ګوتې ئې سپینې وي ـ د کوم بازچه پنجه سپینه وي

سپین ګوتے باز په منګل ناست ؤ ناڅاپه والوت
کــه جهان درست پسې پره کړمه پیدا به نهٔ شي (حافظ)

ـــــ **ګنیځ / ګهیځ** :ـ سپین سحر ـ صبح صادق ـ

ـــــ **لمن**:ـ (ل+م+ن)(پ تر ـ مذ ـ مو ـ عنه ـ ج ـ لمنې) هغه سړے چې لمن ئې سپینه وي ـ مجازاً پاک لمن سړے ـ نېک بې داغه ژوند واله ـ

ـــــ **لمنے**:ـ (ل+م+نے) (و ـــ سپین لمن)

ـــــ **لمني**:ـ (ل+م+ني)(پ تر ـ حمص) پاکه لمنه لرنه ـ پاکدامني ـ نېک او پاک ژوند

ـــــ **لمے**:ـ (ل+مے)(ق ـ پ تر ـ اس ـ مذ ـ ج طي)د لومبړ په شان یو ځناور ـ چې د څرمنې نه ئې پوستین جوړولے شي ـ (قاقم) دا څرمن ډېره سپینه وي ـ

ـــــ **مخ**:ـ(م+خ) کنایه :بې قصوره ـ بې ګناه ـ

ـــــ **مخے**:ـ(م+خے)کنایه: بې ګناه ، بې قصوره ـ روڼ مخے ـ

ـــــ **مخي**:ـ (م+خي) بې ګناهي ـ بې خطائي ـ بې قصوري ـ روڼ مخي ـ

ـــــ **نیولے**:ـ (نی+نو+لے)د وریژو پلاؤ ـ (ق)

ـــــ **والے**:ـ(مذ) سفیدي ـ

ـــــ **وږے**:ـ(و+رګے+ژے)(ق ـ پ تر ـ مذ ـ ج : وږي)د اسونو یو قسم چې کرنګ یا سمند وي د څټ وېښتهٔ ئې سپین بخن وي ـ

ـــــ **وشم**:ـ سپین غونے ـ هر هغه څیز چې سپین رنګ پرې غالب وي ـ

ـــــ **وشمه**:ـ (و+ش+م) هغه څیز چې څهٔ قدرې سپین والے لري ـ سپین بخن ـ

ـــــ **وېښتهٔ** :ـ هغه عمر چې وېښتهٔ پکښې سپین شي سپین ږېر توب ـ زوړ عمر ـ

چـې په تور وېښتهٔ مغرور به خپـل پرهېز شي
د صنعان غونډې ئې خوار په سپین وېښتهٔ کړي (خوشحال)

ـــــ **ویل**:ـ صفا خبره کول ـ رښتیا ویل ـ ښکاره او وضاحت سره وئیل ـ

**په تور او ـــ پوهېدل**:ـ کنایه ده ـ په لوستلو او لیکلو پوهېدل ـ په لیک او لوست پوهېدل ـ

**په ـــ ډاګ غابښ وتل**:ـ غابښ وتل ـ (ق) کنایه ده ـ چې په رڼو سترګو په سودا کښې دوکه خوړل ـ

**په مخ ـــ تلل**:ـکنایه ـ د ګناه نه پاک مړ کېدل ـ روڼ مخ مړ کېدل ـ

**تور او ـــ لیکل**:ـخط لیکل ـ

**تور ــــ معلول:** د معاملې تل ته رسېدل ـ

**د ستر ګو ــــ:** په ستر ګو کښې سپین ځاے ـ

**دهګۍ ــــ:** داګۍ په ځاے په مینځ هغه مواد چې د زیړو سرهٔ یو ځاے وي ـ

**سپین:** (س+پي+ن) (اس مع) په یورپ کښې د هغې ملک نوم چې مسلمانانو پرې اووسوؤ کالونو نه زیاته موده حکومت کړے ؤ ـ بیا ئې د بې اتفاقۍ له کبله عیسائیانو هلته نه د دوي نوغے اوویست ـ هسپانیه ـ اندلس ـ

**سپینځې:** (س+پي+ن+زے)(ق) (اس ـ مذ) قلعي (چې عمومًا لوښي پرې سپینوي)

**سپین خطي:** (س+پي+ن+خ+ط+ئ) (اس مع) د غلزو د شنوارو یوه څانګه ده ـ

**سپینکۍ:** (س+پي+ن+ک+ئ)(ق ـ اس ـ مو) هغه سپینې اوبهٔ چې زنانه ئې په مخ مږي ـ د مخ کریم ـ

**سپینکۍ:** (س+پي+ن+ک+ئ) (اس ـ مو) (۱) د وازدې (وازګې) وړې وړې ټکړې (ق) (۲) د وازدې (وازګې) نرۍ پرده جلۍ ـ (ظفر)

**سپینکي:** (س+پي+ن+ک+ي) (اس مو) سپین رنګے ـ مجازاً وره ـ شمشیر ـ

چې ورو برېښي سپینکۍ
د لنډیز یو شور هار شي (خوشحال)

**سپینکي:** (س+پي+ن+ک+ي) (اس مو) ټکي ـ هدف ـ

څوک مو چې ښه ولې لیندي ډېر وبله کښیني
کلـــه په سپینکۍ د هلک غشے برابر شي (خوشحال)

**سپینکے:** (س+پي+ن+کے) (صف ـ مذ ـ مو ـ کي) سپین شان رنګ واله ـ سپین بخن رنګ واله ـ

**سپینکے:** (س+پي+ن+کے) (اس ـ مذ ـ ج ـ سپینکي) سختو ـ قلمه چې د قیمې نه ډکه کړې شي ـ بیا وچه کړے شي ـ او بیا په دیګچي کښې پخه کړے شي

**سپینکے:** (س+پي+ن+کے) (اس ـ مذ) هغه سپینې اوبهٔ چې زنانه ئې په مخ مږي ـ سپینکي ـ سپېده ـ

**سپینکه:** (س+پي+ن+کَ)(ق ـ اس ـ مو ـ ج: سپینکې) سپږمه ـ د پوزې د سوري باهرنۍ برخه ـ

**سپینول:** (س+پي+ن+و+ل) (مص) (۱) سپین رنګ ورکول ـ (۲) د چرګ یا بل ځناور نه بڼې اوښکل ـ (۳) د کوم ځناور نه څرمن اوښکل ـ (۴) د تانبې لوښي قلعي کول ـ (۵) د کومې معاملې په حقله اصل حقیقت معلومول ـ د کومې معاملې په حقله دروغ ربښتیا معلومول ـ (۶) د اچنه د هغهٔ ټول مال اسباب لوټل ـ هېڅ ورته نهٔ پرېښودل ـ (۷) ډېره زیاته ګران فروشي کول ـ څرمن اوباسل ـ

**سپینولے:** (س+پي+ن+ؤ+لے) (اس ـ مذ)

**سپینولي:** (ــــ و+ل+ي) (اس مو) صفائي ـ تحقیق ـ جاچ ـ اصلیت ـ او حقیقت معلومونه ـ

**سپینونګ:** (س+پي+ن+و+ن+ګ) (وــــ سپینونه)

**سپینونه:** (س+پي+ن+و+ن) (حمص) (۱) د سپینولو عمل ـ د سپینول په ټولو معنو کښې استعمالېږي ـ (۲) د مارغهٔ نه بڼې ایستل ـ (۳) د ځناورو نه څرمن ایستل ـ (۴) قلعي کول ـ (۵) خبره یا معامله ربښیاؤ ته وروستنه ـ (۶) ګران فروشي ـ (۷) ښېخي لوټل ـ

**سپینوونکے:** (س+پي+ن+وُ+ن+کے) (فاع ـ مذ ـ ج: سپینوونکي مؤ: سپینوونکې) (۱) د مارغهٔ نه بڼې ایستونکے ـ (۲) د ځناورو نه څرمن ایستونکے ـ (۳) سپېدي کوونکے ـ (۴) قلعي کوونکے ـ (۵) مال ډېر ګران خرڅوونکے ـ (۶) خبره یا معامله ربښتیاؤ ته رسوونکے ـ (۷) د چا مال اسباب ښېخي لوټونکے ـ

**سپینه:** (س+پي+ن) (صف ـ مو ـ ج: سپینې) (۱) د سپین مؤنث (وـ سپین) (۲) وازده ـ وازګه ـ (۳) صفا ـ کره ـ ربښتیا (د خبرې د صفت په طور راځي) (۴) روپۍ (ق) هغه ډېرې سپینې لري ـ یعني هغهٔ سره ډېرې روپۍ دي

**ــــ توره:** ځلېدونکې توره ـ پرېښېدونکې توره ـ

په هغه لوري چې کېږي پنځم کال دے
هـــــره ورځ د سپې تورو خر پهار دے (خوشحال)

**ــــ تیږه:** (اق) (تي+ګ+ژ) (اس ـ مو ـ ج: سپینې تیږې) سنګ مرمر ـ مشهور سپین کانړے ـ سودو پوئي (ساپي) چې سنګ مرمر ونه غوري وي ـ

**ــــ خاوره:** (خا+ؤ+ر) (اس ـ مو ـ ج: سپینې خاورې) چاک ـ

**ــــ خبره:** (خ+ب+ر) صفا خبره ـ ربښتیا خبره ـ کره

**ــــ خوله:** (خ+ل) لفظي معنیٰ څرګنده ده په شعر یا ټپو کښې د ښکلې خولې په معنیٰ راځي ـ

**ــــ دوړه:** (دُو+ړ) (اس ـ مو) سپین پاؤډر ـ

**ــــ سیله:** (سي+ل) د یخنۍ موسم ـ د سخت ژمي (جمي) موسم ـ چې پکښې واؤرې ورېږي او باران وي ـ

**ــــ کول:** (چاسره) خبره سپینول ـ خبره یا معامله صفا کول ـ (ق)

**ــــ لار:** اصـــ هغه لار چې ډاګه وي چې خنډ پکښې نهٔ وي ـ هواره او بې خطرې لار ـ

د عاشق ومعشوقې تــه سپینه لار ده
تـهٔ وماتـه سپینه لار ولې ګـرنګ کړې (رحمان)

**ــــ لاره:** اصـــ کهکشان ـ اسمان لاره ـ

**ــــ لیتي:** (لي+تي) شیره ـ چې دغنمو د اوړو او سبزۍ نه جوړولے شي ـ (ق)

**ــــ واوره:** تشبیهًا د واورې په شان سپین ـ تک سپین ـ

**ــــ ورځ:** (و+ر+(د)ز) (اس ـ مو) رڼا ـ ورځ ـ

**ــــ وله:** سپېدار ـ مشهوره وُنه ـ

**ــــ وېنا:** صفا صفا وېنا ـ ربښتیا وېنا ـ داسې وېنا چې څهٔ پټونه پکښې نهٔ وي ـ ښکاره وېنا ـ

**ــــ په:** (ق) (۱) په ربښتیا وئیلو مجبوره کول ـ (۲) کنایه: څهٔ څیز په سخت ګذار سره بې حسه کول ـ (ق)

**په ــــ سپینه پخه ول:** (ق) په جنګ کښې زور ازمئیل ـ جنګ په ګټه یا بائیلات سرته رسول ـ

**زړهٔ ــــ خامتا ګېدل:** (ق) کنایه: په خوراک کښې ډېر زیات پرهیز کول ـ فاقه کشي کول ـ نهرې تیرول ـ (ق)

**سپینې جامې:** صفا بې داغه جامې ـ مجازاً بې داغه او پاک ژوند ـ

**سپینې جامې رنګول:** په سپینو جامو رنګ یعني داغ لګول بدنامي په ځان پورې کول ـ

ما په تاپسې دا سپینې جامې رنګ کړې
تـــهٔ لابیا په ما ګمان د نام ونتګ کړې (رحمان)

**ــــ خبرې کول:** صفا او سمې خبرې کول ـ

**ــــ سپینې وئیل:** (چاته) صفا صفا خبرې کول ـ ربښتیا ربښتیا خبرې کول ـ بغېر د څهٔ پټولو بغېر د څهٔ لحاظه وېنا کول ـ

**سپینې:** (س+پي+نے) (اس ـ جمع) (۱) پلې ـ اعصاب ـ (۲) وازده ـ وازګه ـ

**ــــ پریکول:** (د چا) د کاره پاتې کول ـ بې وسه کول ـ چاته ډېر زیات نقصان رسول ـ

**ــــ پرېکېدل:** بې وسه کېدل ـ د کاره پاتې کېدل ـ مجازاً ډېر زیات نقصان رسېدل ډېر زیات سترے کېدل ـ

**ـــــ تبنتېدل**:۔ډېر زيات وارخطا کېدل۔

**ـــــ لټېدل**:۔اعصاب راښکلې کېدل۔ مراد ترې بې کچه ډېر ستړے کېدل۔

**ـــــ سپينېدل**:۔(س+پي+نې+د+ل)(مص)(۱) رنګ سپين کېدل۔ (۲) د چرګ يا مارغۀ نه بېي اوښکلې کېدل۔(۳) د ځناور نه ځرمن اوښکلې کېدل۔ (۴) څۀ خبره يا معامله ربښتياؤ ته راتلل۔ د خبرې يا معاملې اصل حقيقت ځرګندېدل ۔(۵) مال اسباب لوټلې کېدل۔ (۶) سودا پـه ډېره ګرانه بيعـه اخستـل۔ (۷) د جوارو په موسم کښې د وربو نه بېي لرې کېدل۔ ورې سپينېدل۔

**ـــــ رېږه**:۔(۱) په رېږه کښې سپين وېښتۀ پيدا کېدل۔ پوخ عمر ته رسېدل (۲) د رېږې وېښتۀ بېخي يا ډېر سپينېدل۔ زړېدل۔ بوډا کېدل۔ (۳) تجربـه کــار کېدل۔

**ـــــ سترګې**:۔(۱) کنايه :ډېر زيات انتظار کښل(په انتظار انتظار کښې د سترګو تور الوتل۔ مبالغه)(۲) بې حيا کېدل۔ په سترګو کښې د لحاظ اوبۀ نه پاتې کېدل۔

**ـــــ ورې**:۔ (۱) د جـوارو د وربو نـه بېي لـرې کېـدل۔ (۲) د وربو د سـپينولو موسم راتلل

**سپينېدنګ**:۔ (س+پي+د+ن+ګ)(و ـــــ سپينېدۀ)

**سپينېدنه**:۔ (س+پي+ن+ې+د+ن)(حمص) (و ـــــ سپينېدۀ)

**سـپينېدونکے**:۔ (س+پي+نـې+دو+ن+کے)(اس۔ فـا ۔ ج۔ کي)هـر هغـه څيـز چـې سپينولے شي۔ (د سپينېدل په ټولو معنو کښې استعمالېږي)

**سپينېدۀ**:۔ (س+پي+نې+د)(حمص)(۱) د څۀ څيز د رنګ سپينېدنه۔ (۲)د مارغۀ نه بېي اوښکلې کېدنه۔ (۳) د ځناور نه ځرمن اوښکلې کېدنه۔ (۴) د خبرې ربښـتياؤ تـه راتلنـه۔ (۵) مـال حال شو کېدنـه۔ (۶) د څۀ څيـز ډېره زياته بيعه ورکونه۔ (۷) د وربو نه بېي اوښکلې کېدنه۔

**سپئير**:۔ (س+پي+ئ+ر)(انګ۔ اس۔ صف)فالتو۔ زائد۔ زياتي۔

**ـــــ پـارټس**:۔(پا+ر+ټ+س)(انـګ۔ تـر۔ اس۔ ج)د مـوټرو۔ بسـونو يـا د نـورو مشينونو فالتو پُرزې۔

**ست** :۔ (س+ت)(هـ۔ اس۔ مذ)د څۀ څيز جوهر۔ روح لکه د اسپغولوست۔

**ست** :۔ (س+ت)(اس۔ مذ)عزت ابرو۔ (کړ) پت۔

**ـــــ ساتے**:۔ (سا+تے)(اس۔ مذ۔ ج۔ تي)د ناموس کار کوؤنکے۔ ننګيالے۔

**ـــــ من/ مند**:۔ (م+ن+د)ننګيالے۔ پت جن۔ غېرتي۔

**ست** :۔ (س+ت)(اس۔ مذ۔ ج:ستونه)بلنه۔ دعوت۔

**ـــــ غوښتل**:۔د تکلف نه کار اخستـل۔ د چاپه دعوت کښې د شريکېدو د پاره بانه لټول۔

د صبا سره بـــه بـيا صبا ته ګورو

نن خو وڅښه هسې مه غواړه ستونه (ظفر)

**ـــــ کول**:۔(۱) پـه خوراک کښـې د شـريکېدلو بلنـه ورکـول۔ (۲) پـه وادۀ ښادۍ کښې د شريکېدلو بلنه ورکول۔

**ـــــ کېدل**:۔ په خوراک يا وادۀ ښادۍ کښې د شريکېدو بلنه ورکولے کېدل

**ستا** :۔ (س+تا)د مخاطب ضمير دے۔

کـــه داستا ميـــنه ګناه زۀ ګنهګار يم

که داستا مينه بد کار دے زۀ بد کار يم (خوشحال)

**ـــــ بچے لوے شه** :۔ دعائيه جمله ده۔ د چاد خبرې په تائيد کښې وئيلے شي۔ يعني تا درسته خبره اوکړه۔

**ـــــ پړے يا پټکے او زما غاړه**:۔د يو الزام په حقله د خپلې صفائي په حقله وئيلے شي چې که زۀ مجرم ثابت شوم نو بيا چې تۀ کومه سزا رالـه راکوې راکولے شي۔

**ـــــ څخه**:۔ (ـ(ت)س+خ)(۱) ستانه۔ له تانه۔ د تانه۔ (۲) تاسره۔

**ـــــ د جيبه يا د کوره څۀ ځي**:۔ يعني ستا په دې کښې څۀ تاوان دے۔

**ـــــ سر**:۔څوک چې يوه خبره بيا بيا پوښتي نو د قهره ورته وئيلے شي۔

**ـــــ سره**:۔ (س+ر)(۱) ستاڅخه۔ (۲) ستا په معصيت کښې۔ د تاسره۔

**ستار** :۔ (س+تا+ر)(اس۔ مذ۔ ج۔ ونه)د يـو مشـهور سـاز نـوم چې پخـوا پکښـې درې تارونه لګولے شول۔ ځکه ئې نوم ستار شۀ اوس ئې مختلف قسمونه دي او شکل و صورت نه علاوه د تارونو شمېر ئي هم مختلف دے۔

**ـــــ باز**:۔(ـــــ باز)(ف تر۔ اس۔ مذ۔ ج۔ ان مو:بازه)ستار غږوونکے۔ د ستار د غږولو ماهر۔

**ـــــ بازي**:۔ (با+زي)(ف تر۔ اس۔ مو ج۔ ئ)د ستار د غږولو فن۔ د ستار غږونه

**ستّار** :۔ (س+ت+تا+ر)(ع۔ اس ص۔ مذ)د خداے پاک په ښکلو نومونو کښې ښکلے نوم دے۔ معنیٰ ئې پټوونکے۔ پرده اچوونکے۔

زۀ عـاجز بنده عاصي يم

پرده پوښ مې شې ستاره (خوشحال)

**ستار علي خان خېل**:۔ (س+تا+ر+ع+لي+خا+ن+خېـل)(اس۔ مع)پـه دې کښـې خضر خېل، او نظر خېل دواړه کورنۍ شاملې دي۔ او دواړه بيا علي خان خېل څـانګې دي۔ چې (سرکي خېل،مچاخېـل، مـده خېـل رحـيم خېـل ،تمنازئ) درويش خېل وزير دي۔

**ستاره** :۔(س/س+تا+ر)(ف۔ اس۔ مو)(۱) ستورې۔ کوکب۔ (۲) نصيب۔ بخت۔ (۳) ستار۔ اساز۔ (۴) د کتاب د مخ نه چار چاپېره جدول۔ دا راښکلو الـه چې د دې په امداد کرښې راښکلے شي۔

خوبي د خپلې چارې څوک په ست په کشش غواړي

څـــوک خـــپل کـارونه واړه حواله پـــه ستاره کا (خوشحال)

(۵) د ستورې په شان زلېدونکے۔ ښکلے۔

**ـــــ پرېوتل**:۔ستورې ډوبېدل۔ مجازاً قسمت خرابېدل۔ بد نصيبي راتلل۔

**ـــــ پېشاني**:۔ (پې+شا+ني) (ف تر۔ صف)هغـه اس چې پـه تنـدي ئې سـپين ستورے شان جوړ شوے وي۔

**ستارۀپاکستان** :۔ (ف تر۔ اس۔ مذ)د پاکستان ستورے يا خطاب دے۔ (پخوا ستار اف انډيا (ستارۀ هند) يو خطاب ؤ۔ دا د دغې خطاب نوې قامي شکل دے۔

**ستارۀ سحريا سحري** :۔ (س+تا+ر+ئې+س+ح+ري) (ف تر۔ مذ) د سحر ستورے زهره۔

**ستارۀ صبح** :۔ (س+تا+ر+ئ+ص+ب+ح)(ف تر۔ مذ)د سحر ستورے۔ زهره

**ستاره** :۔ (س+تا+ر) (اس۔ مو) هيبت۔ رعب۔ د بدبه۔

**ـــــ پرېوتل**:۔ د چا سام پرېوتل۔ د چا رعُب لاندې راتلل۔

**ـــــ پرولېدل**:۔(ق)(و ـــــ ستاره پرېوتل)

**ستاره** :۔ (س+تا+ره)(ق۔ اس۔ مو۔ ج:ستارے)صلح۔ امن۔

**ستاسو / ستاسې** :۔ (س+تا+سې)ضمير مخاطب۔ اضافي حالت۔ دستا۔

**ستا کهالم** :۔(س+تا+ک+ها+ل+م)(و ـــــ ستا کهالم)

**ستالب** :۔(س+تا+ل+ب)(ق۔ اس۔ مذ) يـو مشـهور بـوټے دے۔ چې د مـلا د درد دوائي کښې استعمالېږي۔

**ستان** :۔ (س+تا+ن)(ف۔ لاحقه)(۱) د فارسـي لاحقه ده۔ نورو الفاظونه وروستو لګولے شي او د ځاے يا د وخت معنیٰ ورکوي۔ لکه ګلستان۔ زمستان ۔ (هر کله چې د دغې لفظ په اخر کښې صحيح حرف (Consonant) وي۔ نو د سّ د لاندې زېر (کسره) لګولے شي۔ لکه ګُل۔ س۔ تان خو په پښتو کښې عموماً د سّ سکون سره راځي۔ او په اخر کښې ئې د نون غنه په ځاے صحيح نون راځي۔ (۲) د ملک وغېره معنیٰ هم ورکوي۔ لکه پاکستان۔ افغانستان وغېره۔ (۳) خوا ، ګر ، ستون ، بانه۔

**ستان** :- (س+تا+ن)(ف ـ لاحقه) د فارسیِ لاحقه ده ـ د نورو الفاظو نه وروستو لګولے شي ـ او د اغشتونکي معنیٰ ورکوي ـ لکه دِل سِتان ـ (زړۀ وړونکے) (په پښتو کښې د نون غنه په ځاے صحيح نون راځي)۔

**ستانه** :- (س+تا+ن)(اس ـ مو ـ ج :ستانې)(۱) کور ـ مکان ـ (۲) د چا بزرګ ولي يا سّيد کور ـ پير خانه ـ (۳) د چا ولي روضه۔

نــــه د قضـــــادفع په دارو، پـه صدقو شي
نۀ له ګورستانه ستون يو مړے په ستانو دے (حافظ)

**ـــــ دار** :ـ اِص ـ (۱) د چا بزرګ ولي يا سّيد د کورنیِ غړے ـ (۲) مشر او عزتمند سړے ـ

**ـــــ نيول** :ـ اِص ـ د چا بزرګ مريد جوړېدل ـ

**ـــــ سترے کول** :ـ اِص ـ ستانوته د سوال د پاره ډېر ځله تلل راتلل۔

ستا وصال پــــه دعا غواړم نه ئې مومم
ما پـه ډېر ورتلۀ راتلۀ سترے ستانې کړې (خوشحال)

**ستاوندے** :-(س+تا+و+ن+دے)(ق ـ اس ـ مو)فضول ـ بېکاره او عبث خبرې

**ـــــ کول** :ـ فضول او عبث خبرې کول ـ بکواس کول ـ

**ستائش/يش** :-(س+تا+ئ+ش/ي+ش)(ف ـ مو ـ ج ـ ونه)صفت ـ ثنا ـ تعريف

**ـــــ ګاه** :ـ(ګا+ه)(ف تر ـ مو)د نظم يا د غزل اخري شعر (مقطع) چې شاعر پکښې خپل تخلص راولي او (پخوابه ئي) په دې شعر کښې د خپل صفت هم وکړو

**ـــــ ګري** :ـ (ګ+ري)(ف تر ـ مو ـ ج ـ ګرۍ)ستائينه ـ تعريف ـ صفت ـ کؤنه۔

**ستائيل** :- (س+تا+ئ+ل)(مص مت)ستائينه کول ـ صفت کول ـ تعريف کول ـ مدح وئيل۔

يو صغت به ئې ونۀ کا که څوک ستائي
پــــه هــزار زبــــان زما حبيب (خواجه محمد بنګش)

**ستائيلے** :- (س+تا+ئي+لے)(مف ـ مذ ـ ج :ستائيلي ـ مو :ستايلے)صفت کړے شوے ـ تعريف کړے شوے ـ

**ستاينګ** :- (س+تا+ي+ن+ګ)(ق ـ حمص)صفت ـ تعريف ـ

**ستاينه** :- (س+تا+ي+ن)(حمص)صفت ـ تعريف ـ

**ستايوال** :- (س+تا+ي+وا+ل)(اس فا ـ مذ ـ مو ـ ه)(۱) ستاينه کوؤنکے ـ صفت کوؤنکے ـ تعريف کوؤنکے ـ (۲) خطبه ورکوؤنکے ـ خطيب۔

په لويو غرو مې وښا درومي نه په خنډوپه ټال
نړۍ زمــا ده نـــوم مې بولي په دريغ ستايوال (امير کروړ)

**ستايونکے** :-(س+تا+يو+ن+کے)(فاع ـ مذ ـ ج :ستايونکي)(وــــ ستايونے)

**ستايونے** :- (س+تا+يو+نے)(اس ـ فا ـ مذ ـ ج ـ ني)ستايُونکے ـ ستائينه کوؤنکے ـ صفت کوؤنکے ـ

**ستايه** :- (س+تايه)(اس ـ مو)ستائينه ـ صفت ـ تعريف ـ

**ـــــ کېدل** :ـ تعريف کېدل ـ ستائيلے کېدل ـ صفت کېدل ـ

**ستايه وُو نکے** :- (س+تا+ي+وُو+ن+کے)ستائينه کوؤنکے ـ تعريف کوؤنکے

**ستبر** :- (س+ت+ب+ر)(ف ـ صف)غټ ـ ټينګ۔

**ستخ** :- (س+ت+خ)(اس ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه)هغه څيز چې په ژبه ستخ او رانښکونکے لګي ـ لکه هريړه ـ يا د انار پوستکے ـ

**ستخ** :- (س+ت+خ)(اس صف ـ مذ ـ مو :ستخه ـ ج ـ ستخے) (۱) ســـخت ـ نـــا پسندلے ـ ستخ ـ (۲) کلک او نيغ۔

**ستديوم** :-(س+ت+د+يو+م)(انګ ـ اس)ستېډيم ـ د لويو هغه مېدان چې چار چاپېره ترې د تماشينو د ناستې د پاره ځايونه وي۔

**ستر** :- (س+ت+ر) (صف ـ مذ ـ موستره ـ ج :سترے) (۱) لوے ـ (په عمر کښې) (۲) لوے ـ عظيم ـ (په مرتبه بدن وغېره کښې)

**ـــــ پوهه** :ـ (پو+ه) (ق)(اس ـ مو ـ ج ـ مے)لويه پوهه ـ حکمت ـ دانش ـ

**ـــــ ټولواک** :ـ (ق)(ټو+ل+وا+ک)(پ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان)د شاهانو بادشاه ـ شاهان شاه شاهنشاه ـ

**ـــــ کارونه** :ـ لوے کارونه ـ کارنامې۔

**ـــــ کول** :ـ (وــــ سترول)

**ـــــ کېدل** :- (وــــ ستربدل)

**ـــــ ګيز** :ـ (ګي+ز)سترګه ور ـ سترګې لرونکے ـ مجازاً صاحب نظر ـ هوښيار ـ پوهان۔

**ـــــ ليکوال** :ـ لوے اديب ـ

**ـــــ مشر** :ـ(م+ش+ر) لوے مشر ـ لوے سردار ـ

**ـــــ مني** :ـ(م+ني)بزرګي ـ لوے والے ـ

**ـــــ ناب** :ـ(نا+ب) (ق) (اس ـ مذ)حاکم ـ د حکومت نائب ـ نائب السلطنت ـ

**ـــــ واکمني** :ـ امپريلزم۔

**ـــــ ستر** :ـ (س+ت+ر) (ق ـ اس ـ مذ)شقيقه ـ غوړته مخامخ هډوکے نيم سرے

**ـــــ ستره ماڼۍ** :ـ لويه بنګله ـ محل۔

**ستر** :- (س+ت+ر) (ع ـ مذ ـ ج ـ سترونه) پټونه ـ پړده پوشي ـ حجاب ـ

**ـــــ اخستل** :ـ د (چا) د چا پړده ماتول ـ څوک بې پړدې کول ـ د نامۀ نه لاندې وېښتۀ خرئيل پاکي اخستل ـ

**ـــــ پټه ول** :ـ د ستر ځاے پټول ـ د ښځې پټ اندام د پاسه کپړه اچول ـ

**ـــــ د زړۀ پکار دے** :ـ يعني مخ پټول کافي يا ضروري نۀ دي پاکي او ځان ژغورنه د زړۀ کار دے (عموماً هغه خلق وائي ـ څوک چې د ښځو د پړدې په مرسته نۀ وي)

**ـــــ کول** :ـ پړده کول ـ د ښځو خپل مخ وغېره د غېرو خلقو نه پټول ـ

**ـــــ ماتول** :ـ(۱) چا نارينه ته د خپلولیِ وغېره په وجه بې پردې مخامخ کېدل ـ ستر نۀ کول ـ (۲) په ناجائزه طريقه د ستر دارې ښځې پرده لرې کول ـ بې پردې کول ـ

**ـــــ ماتېدل** :ـ (۱) پرده نۀ پاتې کېد ـ د خپلولیِ په وجه د کوم سړي نه ستر نۀ پاتې کېدل ـ (۲) بې پړدې کېدل ـ (۳) شرم لرې کېدل بې تکلفه کېدل ـ (۴) طنزاً هغه سړي ته وئيلے شي ـ څوک چې پټ ناست وي ـ او بهر ته نۀ راووځي ـ ل لکه ستر خو دې نۀ ماتېږي ـ لږ بهر ته راووځه

**ـــــ مني** :ـ(م+ني)(اس ـ مو ـ ج ـ ئ)په ستر کښېناستل په ستر کېدل پرده تشيني ـ

**په ـــــ کول** :ـ پړده کښې کښېنول ـ د جينکو په حقله وئيلے شي ـ چې هغه لږې پيغلوکیِ شي ـ نو بيا ئې بې پردې بهر ته وتنه بنده کړے شي ـ

**په ـــــ کېدل** :ـ په پړده کښې کېدل ـ د جينیِ پېغلتوب ته رسېدل ـ چې بيا بې پردې د هغې بهر ته وتل منع کړے شي ـ

**ستراتېژيکي** :- (س+ت+را+تې+ژي+کي)(انګ ـ صف) ستراتيجي ـ جنګي مهارت سره تړلے ـ

**ـــــ وسله** :ـ (و+س+ل) جنګي وسله ـ د دفاع وسله ـ

**ستراو** :- (س+ت+را+و)(ق ـ اس ـ مذ) (۱) د يوې مېوې دارې ونې نوم ـ (۲) د مېوې شيره ـ

**ستراو** :- (س+ت+را+و)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)هغه مېوه چې ونه کښې پخه شي ـ او پخپله راووغورځېږي ـ

**سترغله** :- (س+ر+غ+ل)(اس ـ وا ـ ج ـ ے)سترغلے ـ د سترګې کاسه ـ

**سترغلے** :-(س+ت+ر+غ+لے)(اس ـ مذ ـ ج ـ غلي)(۱) د سترګو کوغالے ـ (۲) د سترګو تور ـ

سترغلــې مې د فراق په ژړا سرهٔ شول
د سبـــــــزې اثـر ئې پاسېدهٔ له آبه (رحمان)

**سترغلې** :- (س+ر+غ+لې)(اس ـ مذ ـ ج ـ علي) (۱) د ســترګو کوغــالــې ـ (۲) د سترګو تور ـ

**ـــ پړسول**:- په ژړا سترګې پړسول ـ ډېر زيات ژړل ـ

**ـــ پړسېدل**:- په ژړا ژړا سترګې پړسېدل د ډېرې زياتې ژړا علامت ـ

**ـــ سرې سرې ناغې کېدل** :- په غم کښې د ډېرې ژړا په وجه سترګې سرې کېدل ـ

ستا په غم مې سترغلې سرې سرې ناغې شول
يـــا خېمــــــې دې سيه پـوشه، سرهٔ تناب (رحمان)

**ـــ ستر کوکو** :- (کو+کو) (ق ـ اس ـ مذ)نستون ـ مشهور ګل ـ

**سترګ** :- (س+ت+ر+ګ)سابقه ده ـ د "سترګه جوړولو کښې استعمالېږي ـ چې د سترګو معنٰی ورکوي ـ

**ـــ تورن**:- (تو+ر+ن)(۱) هغه سړے چې سترګې پرې تورېږي يعنې سر ئې ګرځي (۲) د څهٔ څيز ډېر زيات شوق هسه لرونکے ـ (۳) مکار فريبي ـ جيب تراش ـ ګړ کپ ـ

**ـــ تورے**:-(تو+رے)(ق ـ صف ـ ج ـ توري)(۱) تور سترګے ـ توري سترګې ـ (۲) کنايه :هغه سړے چې د خوراک څې څيز ته ډېر مائل وي ـ

**ـــ کېدل**:- (ق)(۱) توري کړې سترګې لرل ـ (۲) د خوراک څهٔ څيز ته ډېر په شوق کتل ـ څهٔ څيز ته د پسخېدل ـ

**ـــ خوږے**:-(خو+ګے/ږے)(اس ـ مذ ـ ج ـ خوږي)د سترګو خوږېدل ـ د سترګو درد اشوب چشم ـ (پ+ر+پ)

**ـــ خوږي**:-(خو+ګي+ژي)(اس ـ مو ـ ج ـ خوږې) د سترګو خوږېدنه (اس مذ)د سترګو څنب ـ د سګرګو يو ځل بندېدنه ـ او پرانستے کېدنه ـ (طرفتـه العين)ډېر لږ وخت کښې ان فن ـ يو لحظه ـ

**ـــ وال**:-(وا+ل)(وـــ سترګور)

**ـــ ور**:-(و+ر)(يا ـ ګ +ور)(صف ـ مذ ـ ج ـ آن مو ـ وره ، ج ـ ورے)(۱) د سترګو خاوند ـ هغه سړے چې سترګې لري ـ (۲) مجازاً ـ د پوهې او فهم خاوند صاحب نظر ـ

**ـــ وږے/اوږے**:-(ؤ+ګے/ژےيا ـ او ګے/ژے) (صف ـ مذ ـ ج:وږي)
هغه سړے چې سترګې ئې وږې وي ـ حرصناک ـ حريص ـ

**سترګېژن** :- (ې+ج+ن) (ق ـ اس ص ـ مذ)داسې څيـز چې ډېـر ښـکلے او پـر کششه وي ـ او زر نظر راکاږي ـ

**سترګک** :- (س+ت+ر+ګ+ک)(اس ـ مذ ـ ج ـونه)د سترګو اشارت ـ بل سړي ته سترګو په ذريعه پټه اشاره ـ (عموماً د يوې سترګې په پټولو کولے شي) ـ

**ـــ وهل**:- په سترګه اشارت کول ـ د سترګې اشارت پوهول ـ سترګه وهل ـ

**ـــ سترګکونه وهل (چاته)**:- (وـــ سترګک وهل)

**سترګلينه**:- (س+ت+ر+ګ+لي+ن)(ق ـ اس ـ مو)نظربازي ـ

**سترګن کوکو**:- (س+ت+ر+ګ+ن+کو+کو)(ق ـ اس ـ مذ)نرګس ـ د نرګس ګل ـ

**سترګنلے** :-(س+ت+ر+ګ+ن+لے) (ق ـ اس ـ مــذ ـ ج ـ ســترګنلي)د ســترګو کاسه ـ د سترګو کو غالے ـ

**سترګو** :- (س+ت+ر+ګو)د سترګه مجروعي شکل ـ لکه د سترګو ـ لکه سترګو وغېره ـ

**ـــ اخستل**:- د نظر کېدل ـ بد نظر لګېدل ـ

**ـــ ته اوبهٔ ورکول**:- (قندهار)سترګې خړېول ـ تماشه کول ـ معشوق ته کتـل ـ د ښائيست ـ او حُسن نه محفوظ کېدل ـ يادېدل ـ

**ـــ ته دربدل**:- (ق)سترګوته وړاندې کېدل ـ يا دېدل ـ د چا نيکې ښېګړه يادېدل ـ

**ـــ ته غور ورکول**:-تماشه کول ـ معشوق ته کتل ـ (اق)

**ـــ ته کتل**:- (د چا)(۱) د چا اشارت ته انتظار کول ـ (۲) د چا لحاظ پاس کول

**ـــ خوږل**:- د بد نظر په وجه مړکېدل ـ يا نقصان رسېدل ـ

**ـــ سترګو ته کېدل**:- سترګو ته وړاندې وړاندې کېدل ـ ډېر يادېدل ـ

**ـــ وهل**:- (ق)د نظر رسېدل ـ د چا بد نظر لګېدل ـ

**په ـــ ورتلل**:- (ق)په ډېره خوشحالئ تلـل ـ د چا په امر کوم ځاے ته په ډېره خوشحالئ ورتلل ـ

**پر ـــ ويني ابنتل**:- (ق)(وـــ په سترګو پيروي اوبنتل)

**ـــ په اوچتو**:- په هسکو سترګو ـ په فخر سره ـ په غرت ابرو سره ـ

**په ـــ په پټو ړوند**:-بالکل ړوند چې هيڅ نهٔ ويني ـ

**پـه ـــ پـه دواړو**: پـه ډېـره خوښـه ـ بسـرو چشـم پـه ډېـره خوشـحالی (بـه داکارکوم)ضرور (به کوم)

**پـه ـــ بدلګېدل**:- (۱) په سترګو ښهٔ نهٔ لګېدل ـ د چا په ليدلو زړهٔ ته تاؤ يا نقصان رسېدل ـ د نا خوښـی د اظهـار د پـاره وايـهٔ شي ـ (۲) رڼا يـا بـل څـهٔ داسې ځلنده څيز ته سترګې بربښېدل ـ

**پـه ـــ پوهېدل/پوېول**:-د سترګو په اشارت پوهېدل ـ تش د سترګو پـه کتلـو مطلب ته رسېدل ـ

**ـــ په پيروي اوبنتل**:-(۱) په سترګو تور والے خوړېدل ـ (۲) ډېر زيات په قهر کېدل

**په ـــ توره شپه کېدل**:- (ق) (۱) شمکوره کېدل ـ (۲) په قهره کېدل ـ

**په ـــ تيارهٔ راتلل**:-(۱) سترګې تورېدل ـ سرګرېدل ـ (۲) (چاته) ډېره بدې کېدل ـ په نظر بد لګېدل ـ د چا په ليدو ډېر په قهر کېدل ـ

**په ـــ تيارهٔ کېدل**:-(۱) د چا نه بې حده ډېر زيات نفرت کول ـ د چا پـه ليدو ، نفرت، د اظهار د پاره وئيلے شي ـ (په زړهٔ تيارهٔ کېدل هم وائي)

**په ـــ ځائے کول /يا په دواړو ځائے کول**:-په ډېر ناز او نعم ساتل ـ بې حده زيات قدر او پالنه کول ـ

**په ـــ خوږل**:- (څوک) (۱) د ډېر قهر او غصې په نظر کتل ـ (۲) سترګې نبغې نيول ـ نبغ نبغ کتل ـ

**په ـــ راتلل**:- په نظر راتلل ـ

**پـه ـــ رڼا کېـدل**:-(۱) د بـد حالـه نـه ښـهٔ حـال تـه راتلـل ـ حـال ښـهٔ کېـدل ـ (۲) نظر لګېدل ـ

**په ـــ ړوند شے**:-(۱) ښېره ده ـ خو څوک چې يو مخامخ پروت څيز لټه وي ـ او نه ئې ويني نو طنزاً ورته وايهٔ شي ـ ړوند شے ـ

**په ـــ سترګو کښې**:-په اشارو اشارو کښې ، د سترګو په کتلو يا اشاره په څهٔ خبرو پوهول يا پوهېدل ـ

**په ـــ سترګو کښې پوهول/پوېول**:-(وـــ په سترګو پوهول)

**په ـــ سترګو کښې وئيل**:- د سترګو په اشارت کښې څهٔ مطلب بيانول ـ

**پـه ـــ ښـهٔ لګېـدل**:-د چاپـه ليـدلو زړهٔ خوشـحالېدل ـ عمومـًا پـه نفـي کښـې استعمالېږي ـ لکه هغه مې په سترګو ښهٔ نه لګي ـ

**په ـــ تيل وقال کول**:-د سترګو په اشارو خبرې کول ـ

د مئينو سره قيل وقال په سترګو! (خوشحال)

**په ـــ کسل**:- پـه سترګو ليدل ـ ليدل (عمومـًا پـه نفي کښـې استعمالېږي) د خداے تعالیٰ مياشتې بزرګې ، لالے به نه وکسے په ستوګے ـ (متل)

**په ـــ کښې اخستل**:- (ق)د غصې يا د حصد لـه کبلـه ـ چاتـه نقصـان رسېدل ـ د نظره کېدل ـ

**په ـــ کښې جګ درېدل**:ـ یادېدل ـ لکه: ستا نیکي مې په سترګو کښې ولاړه ده

**پــه ـــ کښې خـاورې اچـول**:ـد لیـدلو نـه محرومـه کـول ـ مجـازاً دوکـه ورکـول ـ تېر پاسل ـ

**په ـــ خاورې ډوړول/پاشل**:ـ(وـــ په سترګو کښې خاورې اچول)

**په ـــ کښې ختل**:ـ (ق) کنایه :بې حیا کېدل ـ بې حیائي کول ـ بد لحاظي کول ـ

**په ـــ کښې خندل**:ـ(وـــ په سترګو کښې موسېدل)

**په ـــ کښې دوند راتلل(چاته)**:ـ څۀ څیز سم نۀ ښکاره کېدل ـ سم نظر نۀ لګېدل ـ

**په ـــ کښې راتلل**:ـ پـه نظر کښـې راتلـل ـ د چاتوجـه ورګرځېـدل ـ د چا پـه حقله شک پېدا کېدل ـ

**په ـــ کښې ښورېدل**:ـ (ق) (۱) یادېدل ـ (۲) چا چې څۀ څیز پټ کړې وي د هغۀ د سترګو د حرکاتو نه ښکاره کېدل ـ

**په ـــ کښې غړېدل**:ـ (۱) په سترګو کښې چوکـه کېدل ـ پـه سترګو بـد لګېـدل ـ بـدې کېـدل ـ (۲) یادېـدل ـ سـترګوته ورانـدې ورانـدې کېـدل ـ لکـه ستانیکۍ مې په سترګو کښې غړېږي ـ (ددې نیکۍ یـا د احسـان پـه وجـه ستا خلاف څۀ کار نه شم کولې)

**په ـــ کښې کټ اچول**:ـ په سترګو کښې ننه وتل ـ د سترګو او نظر پـه مخکښـې مخالف کار کول ـ په سترګو کښې خاورې اچول ـ

**په ـــ کښې ګوتې منډل**:ـ پـه سترګو کښـې ننه وتل ـ مخامخ دروغ وئیل ـ

**په ـــ کښې موسېدل/مسېدل**:ـداسـې مُسکا کـول چـې لـه شـونډو نـۀ ښـکاري ـ نلکه سترګې حال وائي ـ پټ پټ موسېدل ـ په ناز او ادا کښې موسېدل

**پـه ـــ کښناستل**:ـ سـترګو تـه مخـامخ کښـناسـتل پـه نظـر کښـې یـاد نظـر د وړاندې بودل (بودن) ـ

کـه تمام عمر ئې یار په سترګو ناست وي
تمــــام عمــــر ورښکارېږي یو ساعت (رحمان)

**په ـــ کښې ننه وتل**:ـ د چا لـه سترګو نـه شرمېدل ـ مخـامخ دروغ وئیـل ـ د یـوې ربښتیو منلې شوې خبرې نه انکار کېدل ـ

**په ـــ کښې وازدې کېدل**:ـ
په سترګو کښې حیا نۀ پاتې کېدل ـ بې شرمه کېدل ، بد لحاظه کېدل ـ

**په ـــ کول**:ـ (ق) د نظره کول ـ بد نظر اچول ـ

**په ـــ نۀ لېدل**:ـ ببخي نۀ لېدل ـ یو څیز بالکل په نظر کښې نۀ راتلل ـ

هسې ډوب یم د ګناه په دریابونو
چې په سترګو مې ونۀ لیدۀ ساحل (رحمان)

**په ـــ کښې وینې راتلل**:ـ (چانـه) لـه ډېـره قهـره سـترګې تکـې سرې کېـدل ـ ډېـر زیات په قهر کښې کېدل ـ

**په ـــکښې ئې نو نشته**:ـ په سترګو کښې ئې نمې نشته ـ بې حیاده ـ بد لحاظه

**په ـــ کېدل**:ـ (ق) د نظره کېدل ـ بد نظر لګېدل ـ

**په ـــ لاس کښېښودل**:ـ (۱) د سترګو د خوړ یـا د حفاظت پـه غـرض پـه سترګو لاس کښېښـودل ـ (۲) بـل لـه سترګې پټـول ـ طنـزاً وئیلې شـي چـې چـاد پـه سترګو لاس خو نۀ ؤ ایښې (چې تا دغه څیز یا خطرهې نۀ لیدله)

**په ـــ مړل**:ـ ډېره مینه اربښکاره کول ـ ډېر زیات قدر کول ـ

**پــه ـــ نـۀ راتلـل**:ـ پـه سـترګو کښـې هـېڅ ښـکارېدل ـ پـه نظـر کښـې سـپک ښکارېدل

عارفـــان د قناعت په ګنج توانګر دي
چې ئې نۀ راځي د خلقو مال په سترګو (خوشحال)

**په ـــ وړل**:ـ ډېره مینه یا قدر وربښکاره کول ـ

تل نازونه وړي د یار خوشحال په سترګو (خوشحال)

**په ـــ سر سترګو**:ـ په ډېره خوښه ـ په سر چشم په دواړو سترګو (به دا کـار کـوم) ضرور (به کوم) ـ

**په غټو ـــ (خوب کول)**:ـ په غړېدلو سترګو ـ

عاشق یو لکــــه لېـوه په ستپال پائي
بل په غټو سترګو خوب که لکه سوپه (خوشحال)

**په ـــ کوزو**:ـ په بې شرمۍ سره ـ ملامتې کول ـ

**په ـــ ملالو کتل**:ـ پـه نیم پرانستو سترګو کتـل ـ پـه نیم پټـو سـترګو کتـل ـ پـه معشوقانه نظر او انداز کتل ـ

**په ـــ هسکو**:ـ پـه فخر سـه ـ په اوچتو سترګو په عزت سره ـ

**ترـــ دوګرځم**:ـ درنه قربان شم ـ

**ترـــ ګرځېدل**:ـ (ق) څوک د لرې یا ورک عزیز یا دوست داسې یادېـدل ـ لکـه چې حاضر او موجود وي ـ

**جهان په ـــ نۀ لیدل**:ـ (ق) ډېر زیات تکبر او لوئي کول ـ ډېر غاور کېدل ـ

**دـــ اوبۀ وتل**:ـ پـه سترګو کښې اوبۀ نۀ پـاتې کېـدل ـ بـې حیـا کېـدل ـبـې شرمه کېدل ـ بد لحاظه کېدل ـ

**دـــ بلا اخستل**:ـ د ډېـرې زیـاتې مینـې د اظهـار د پـاره وئیلـې شـي ـ ډېـره زیاتـه مینه څرګندول ـ

بې نیاز څۀ خبر له نازه چې ناز څۀ دے
ستا د سترګو بلا واخلم ناز پــه ما کړه! (خوشحال)

**دـــ پړدې شلېدل**:ـ بې حیا کېدل ـ بد لحاظه کېدل ـ بې شرمه کېدل ـ

**دـــ پناه کېدل**:ـ (۱) د مخې نـه لـرې کېـدل ـ عمومـًا طنـزاً وئیلـې شـي چـې د سترګو نه مې پناه شه (یعني ځه ورک شې) (۲) سـاز کېـدل ـ چېرتـه لـرې یـا دسې ځاے ته تلل چې لیدل ئې نۀ کېږي ـ

**دـــ ځنب/یا ځنبلو کښې**:ـ (وــــد سترګو په رپ کښې)

**دـــ په څوکو کتل**:ـ په ترس کتل ـ په اړخ تل ـ (د مخامخ کتلو په مقابله کښې)

**دـــ په رپ کښې**:ـ دومره دساعت کښې چې سترګې ورپېږي ډېـر زر فـوراً ـ پـه ان فن کښې ـ

**دـــ په ښکار**:ـ چې کوم ځاے پورې نظر رسي ـ ډېر لرې چې (څۀ څیز ایلـه ایلـه ښکاري) ـ

**دـــ په نظر**:ـ (وــــ د سګترګو په ښکار)

**دـــ تور**:ـ (۱) په سترګه کښې توره حصه (۲) ډېـر زیـات خـوښ ـ محبـوب ډېـر عزیز ـ ډېر خوږ ـ

**دـــ تور یا تورې سپینېدل**:ـ(وــــ سترګې سپینېدل)

**دـــ سترګو تور کول**:ـد سترګو د تور په شـان ـ عزیـز او خـوښ ګڼـل ـ ډېـره زیاتـه مینه کول چاسره ـ

**دـــ څخه خاشه نه اخیستل**:ـپـه چـا زړۀ نـۀ سـول بـې رحمـه کېـدل ـ چاسـره پـوټې شان امداد هم نۀ کول ـ

**دـــ لګېدلو ځائې**:ـ یعنې داسې ځاے (کوربه خلق) چې بیا هم ورسره لیدۀ کاتۀ کېږي (د چاسره بد لحاظې نه کولو په موقع وئیلې شي)

**دـــ وړاندې**:ـ د نظر د وړاندې ـ د چاپه موجودګۍ کښې ـ

**دـــ رڼا**:ـ (۱) د سترګو نظر ـ د لیدلو قوت ـ (۲) محبوب ـ

**دـــ روښنائي**:ـ د ـــسترګو زنا :ـ (وــــ د سترګو رڼا)

**دـــ زنا**:ـ د ښځو ته د شهوت په نظر کتل ـ

**دـــ کسې خوړل**:ـ(وــــ سترګې خوړل)

**دـــ سترګو ککۍ**:ـ د سترګو تور په سترګو کښې تور ځاے ـ (اُر:پتلي)

**دـــ ګاټې**:ـ د سترګو مړدکے ـ تولـه سترګه ـ چې لکه د مړدکې غونډه شان وي ـ

**دـــ لاندې کتل**:ـ د سترګو په ګوشو کتل ـ پټ پټ کتل ـ

**دـــ لاندې کتل**:ـ پټ پټ کتل ـ په نیم پرانستو سترګو کتل ـ

**د ـــ لیدلے حال**:۔ هغه حال چې چا په خپلو سترګو لیدلے وي۔ (د اوریدلي حال په مقابله کښې)۔

**د ـــ مرغټانه**:۔ د سترګو کاتے۔

**د ـــ نظیر**:۔ د سترګو رڼا۔ د سترګو نظر۔

**د ـــ نو وچېدل**:۔ په سترګو کښې اوبۀ نۀ پاتې کېدل۔ بې حیا کېدل۔ شرم نۀ پاتې کېدل۔ بد لحاظه کېدل۔

**د ـــ بڅري تلل**:۔ ډېر په غُصه او قهر کښې بودل۔ سترګې له قهره سرې کېدل

**د ـــ نه غورځېدل**:۔ په نظر کښې سپک ښکارېدل۔ حقیر او بې وقره کېدل زوړ عزت نۀ پاتې کېدل۔

**د ـــ وژلے**:۔ مجازاً عاشق۔ په سترګو مئین شوے۔

**د ـــ وهلے**:۔ د سترګو بد نظر وهلے۔ د نظره شوے۔

**د مخامخ ـــ بازي ده**:۔ یعني ټوله ظاهرداري ده۔ مخامخ د دوست وي۔ ښۀ د وائي۔ پشي شائې حال بدل شي۔

**له ـــ ایستل**:۔ د څۀ څیز د شمار یا د وزن اندازه په کتلو اخستل۔

**له ـــ بڅري لوئېدل**:۔ د سترګو نه قهر ظاهرېدل۔ تکړه او غُصه ناک ځوان په حقله وئیلے شي۔

**نېکي په ـــ کښې غړېدل**:۔ د چا ښۀ یاد پاتې کېدل۔ د چا ښېګړه هر وخت یادېدل

**سترګور** :۔(س+ت+ر+ګ+و+ر) (اس ص۔ مذ مو۔ سترګه ور ج:سترګه ورے) (۱) سترګه ور۔ سترګې لرونکې۔ بینا۔ (۲) د فهم او بصیرت خاوند۔

هغـــه غم چې ښادي آور دے

کابه ئې هغه چې سترګور دے (سعید خټک)

**سترګ وړے** :۔ (س+ت+ر+ګ+و+ړ+ے/ګې)(اس ص۔ مذ۔ ج۔ وړي) وړ سترګے۔ چې سترګې ئې وړې وي۔ حریص۔ لالچي۔

**سترګه** :۔ (س+ر+ت+ګ) (اس۔ مو۔ ج :سترګې) (۱) د حیوان (چې انسان هم پکښې شامل دے) د بدن هغه حصه چې څیز ونه وغېر پرې لیدے شي۔ چشم۔ (۲) په وُنه یا بوټي کښې هغه ځاے چې نوې څانګه ترې ټوکېږي۔ (۳) په وُنه یا بوټي کښې هغه ځاے چې نوې څانګه ترې ټوکېږي۔ اُمید۔ طمع۔

**ـــ اچول**:۔ (ق) په څۀ څیز نظر اچول۔ کتل۔

**ـــ اخستل**:۔(ق) کنایه۔ د نظره کېدل۔ بد نظر لګېدل۔

**ـــ اوښتل**:۔(ق) اُمید لرل۔ توقع لرل۔ طمع لرل۔

**ـــ پټول**:۔(وـــ سترګې پټول)

**ـــ پخول**:۔ (ق)کنایه : د هدف (ټکې) د ویشتلو مشق کول۔

**ـــ پخېدل**:۔ (ق) کنایه:د هدف (ټکې) په ویشتلو نظر لګېدل۔ په نشانه بازۍ کښې ماهر کېدل۔

**ـــ خوږول**:۔ (ق) (خ+و+ګ/ږ+و+ل)(مص) (۱) لږ شان خوب کول۔ سترګې خوږول۔ (۲) سترګې پټول۔

**ـــ د ځنګون**:۔ هغه غونډ هډوکے چې د ځنګون مخامخ وي۔

**ـــ د زنګانۀ/ځنګانۀ**:۔ (ق) (وـــ د زنګون سترګه)

**ـــ د سنډا**:۔اص۔کنایه : د چایو وړه شان پیالۍ۔

**ـــ د شهلا**:۔ (وـــ سترګه د نرګس)

**ـــ د صبا(سبا)**:۔د سحر ستورے۔

**ـــ د ماښام**:۔ د ماښام ستورے۔

**ـــ د مېلمه**:۔ مجازاً۔ د ماښام ستورے۔ هغه روښانه ستورے چې اکثر د ماښام په وخت په نظر راځي۔ زهره۔

**ـــ د نرګس**:۔ د نرګس شهلا ګل د سترګې په شان دي ، سپینې پاڼګې۔ او مینځ کښې توره ټکۍ لري۔ د معشوقو د سترګو سره ورله تشبیه ورکولے شي۔

**ـــ د نمر**:۔ د نمر ټکۍ۔ د نمر مخ۔ نمر د نمر/نور ککوړے۔

بیا د نمر سترګه ښکاره شوله ویخ ته (خوشحال)

**ـــ رپېدل**:۔ ځینې وخت سترګه پخپله رپي۔ توهم پرس خلق ددې نه ښۀ یا بد فال نیسي۔ عموماً چې کسه سترګه رپي نو دا بد فال ګڼلے شي۔

**ـــ سر خوړل**:۔ (ق)کنایه: ډېره سخته دښمني او مخالفت لرل۔

**ـــ سوځل**:۔ (ق) (وـــ سترګه نۀ سوځېدل)

**ـــ سول**:۔ (ق) سترګه سوځېدل۔ وېرېدل۔

**ـــ غورځېدل**:۔ (ق)(وـــ سترګه رپېدل)

**ـــ کول**:۔ (ق) دا اصطلاح که ښې ادم د پاره استعماله شي نو معنٰی ئې وېره کول دي۔ او که د حیوان د پاره راشي نو معنٰی ئې تېښتنه کول دي۔ (ق)

**ـــ لرل**:۔ (ق) اُمید لرل۔ توقع لرل۔

**ـــ لګول**:۔ په بوټي کښې د بل بوټي څانګه سترګه لګول۔ په یو قسم بوټي کښې د بل قسم بوټي نرۍ څانګې سترګه ننښلول۔

**ـــ لوېدل**:۔ (ق) په څۀ څیز نظر پرېوتل۔

**ـــ نو سوځل (له چاڅخه)**:۔ (ق) (وـــ سترګه نۀ سوځېدل)

**ـــ نۀ سوځېدل**:۔د چانه هېڅ وېره نۀ لرل۔ د چانه هېڅ وېره ترهه نۀ کېدل۔

**ـــ نۀ کول(چاڅخه)**:۔ (ق)(وـــ سترګه نۀ سوځېدل)

**په ـــ بده کتل**:۔بد کتل۔ په بد نظر کتل۔ عزت او احترام نۀ کول۔

**په ـــ درنه کتل**:۔ چاته د عزت او احترام په نظر کتل۔ د چا عزت او احترام کول

**په ـــ سپکه کتل**:۔ (۱) چاته سپک کتل۔ ذلیل او بې وقره ګڼل۔ (۲) بـــې عزتي کول۔ د هرچا سپکاوے کول۔

**په ـــ ښۀ کتل**:۔ (وـــ په درنه سترګه کتل) په غتوـــ بیدېدل:۔ پـــه وازو سترګو خوب کول۔

**په ـــ کږه کتل** :۔ (۱) په بد نیت چاته کتل ۔(۲) سپک کتل (چاته)

**په یوه ـــ کتل**:۔ یو شان کتل۔ فرق نۀ کول۔ یو شان سلوک کول۔

**داحترام په ـــ کتل**:۔ (وـــ په درنه سترګه کتل)

د ستنې:۔ د ستنې سوم۔ د ستنې د سو سورے چې تار کښې درکولے شي۔ سپم

**دکینې په ـــ کتل**:۔ د حسد په نظر کتل۔ بغض ورسره کول۔

**غوائي ـــ**:۔ (غ+وا+ئ) (اس۔ مو)د غوئي سترګه۔ د یو ګل نوم دے (ق)

**که یوه ـــ۔ که یوه د خاندي او بله دې ژاړي نو**:په هغه موقع وئیلے شي چې یو کار هرو مرو کول وي۔ یعني که ستا خوښه وي او که نۀ خو دا کار به کوې۔

**که یوه ـــ دې ژاړي او بله دې خاندي**:۔ (و۔ یوه سترګه دې خاندي او بله دې ژاړي)

**ګسه ـــ رپېدل**:۔ (وـــ سترګه رپېدل)

**یو ـــ ځلور کول**:۔ (ق) (وـــ دوه سترګې ځلور کول)

**سترګه وال** :۔(وا+ل)(اس ص۔ مذ۔ مو:سترګه واله ج:سترګه والے) د فهم او بصیرت خاوند۔

**سترګه ور** :۔ (و+ر)(اس ص۔ مذ۔ مو:سترګه وره۔ ج:سترګه ورې)

**سترګه ورتوب** :۔ (و+ر+تو+ب)(مذ)نظر۔ بینائي۔

**سترګې** :۔ (س+ت+ر+ګ+ئ)(ق اس۔ مو) (۱) عېنک۔ چشمې۔ (۲) د جندرے (ژرندے) د څرخ چوڼ۔ (۳) د دروازې چوڼ (۴) د اوبو د چینې سورے (۵) د ځناور د سترګې مخصوصه پرده۔ چې ددې پردې په وجه دغه ځناور تښتي۔ که چېرې دغه پرده زائله کړې شي۔ نو بیا دغه ځناور نۀ ترهېږي۔ (ق)

**ستر ګې** :- (س+ت+ر+ګې)(اس ـ مذ ـ ج ـ ولي)د دروازې د چوړ سرے ـ يا د ميچني يا د جرندې(ژرندې) د پل سورے ـ ګرړا ـ چونړ ـ

**ستر ګې** :- (س+ت+ر+ګې)(۱) د ستر ګه جمع ـ دوه يا ډيرې ستر ګې ـ (۲) طمع ـ اميد ـ (۳) خوبن ـ مئين ـ دوست ـ

**ــــ انحستل**:- (د چا)ستر ګې بل خوا اړول ـ

که د غشو تيز باران راباندې وشي
که به ستر ګې له تا واخلم منافق يم (خوشحال)

**ــــ اړول**:- (۱) چاته کتل ـ مخ اړول ـ توجه کول ـ (چاته)(۲) طمع کول د چانه ـ د ستر ګې رپ ډير لږ شان وخت ـ (طرفته العين) (ق)

**ــــ الوځے کول**:- (ق)(وـــ ستر ګې پرېتول)

**ــــ اوچتول**:- (۱) ستر ګې پورته کول ـ پورته کتل ـ عزت موندل ـ کاميابي حاصله ول ـ ښۀ نوم ګټل ـ (۲) (د بل چا) امداد او اعانت کول ـ ملاتړ کول ـ کاميابول

**ــــ اورے کېدل** :- حرص ـ طمع پيدا کېدل ـ

**ــــ اوبنکل/وبنکل/وباسل**:- (۱) رړندول ـ د ستر ګو نه معزوره کول ـ (۲) چاته د قهر په نظر کتل ـ چاته قهرېدل ـ (۳) غُصه کول په چا ـ رعب کښېنول وېرول ـ

**ــــ اوښلے**:- (او+څ+/ش+ل+نے)(پ تر ـ اس ـ مو)د اوښکو ډکې ستر ګې ـ

**ــــ بدلول**:- (۱) بې لحاظي کول ـ رويه بدلول ـ بد نيته کېدل ـ (۲) د اشنا سړي ځان نا اشنا کول ـ خلاف توقع کار کول ـ

**ــــ برابر بدل**:- (په چا) په نظر کښې راتلل ـ ليدل ـ

لابـــه کلـــه زما خوار طالع مدد کا
چې به ستا ستر ګې په ما شي برابرې (خوشحال)

**ــــ برعتول**:- (ق)(مص)په قهر چاته کتل ـ

**ــــ بر کول**:- (۱) په چا غُصه کېدل ـ چاته په قهرېدل ـ (۲) ستر ګې بدلول ـ د چا د خبرې د منلو نه انکار کول ـ

**ــــ بر ګول**:- (ق) (۱) په چا غصه کېدل ـ چاته په قهرېدل ـ (۲) ستر ګې بدلول ـ د چا خبرې منلو نه انکار کول ـ

**ــــ بر ګول**:- (ق)کنايه : په قهر او غضب کښې کېدل ـ

**ــــ بر ګول**:- (ق) (مص)په قهر کتل ـ

**ــــ بر ګے بر ګے کول**:- (ق)(وـــ ستر ګې بر ګول)

**ــــ برندول**:په غُصه او قهر کتل ـ چاته ډير غُصه کېدل ـ ډير په قهر کېدل ـ جنګ جګړې ته تيارېدل ـ

**ــــ بربښبول**:- د نمر وغېره تېزې رڼا په حقله وئيلے شي ـ چې ستر ګې ورته نشي کتے ـ

**ــــ بربښېدل**:- د نمر يا بل څۀ ځيز تېزې رڼا ته ستر ګې نۀ نيولے کېدل ـ

**ــــ بوغے نيول**:ستر ګې دغې يا تغې نېول ـ

**ــــ بقے نيول**:-(وـــ ستر ګې وازې نيول)

**ــــ بوګے** :- بقې ستر ګې ـ پرانستې وازې ستر ګې ـ

لابـــه کله هغه ګل په چمن راشي
د نرګس ګلونه ګورې ستر ګې بوګې (خوشحال)

**ــــ بېلل**:- نظر نۀ پاتې کېدل ـ رړندېدل ـ

**ــــ بې نوره کول**:د ستر ګو رڼا لرې کول ـ رړندول ـ

**ــــ بې نوره کېدل**:- د ستر ګو رڼا نۀ پاتې کېدل ـ رړندېدل ـ

**ــــ پټول**:- (۱) لږ شان خوب کول ـ (۲) په رڼو ستر ګو ، يا د نورو د ستر ګو مخکښې څۀ ناجائزه کار کول ـ (۳) ستر ګې بندول ـ دليدلو نه پاتې کول

**ــــ پټېدل**:- مجازاً ـ مړ کېدل ـ

**ــــ پرانستل**:- (وـــ ستر ګې پرانستل)

**ــــ پرانستل**:-(۱) ستر ګې غړول ـ (۲) د ستر ګې نه پټے وغېره لرې کول ـ (۳) عقل هوش کول ـ

پوئې په خپل تدبير شه ستر ګې پـــرانزه بصير شه
لار دې پـــــه دريـــــاب ده ببرې نۀ لرې سنبالـــه (حافظ)

**ــــ پرانستے کېدل**:- ځيزونه په نظر راتلل ـ مجازاً حقيقت ځر ګندېدل ـ اصل حال معلومېدل ـ

**ــــ پرپټول**:-(۱) (وـــ ستر ګې پټول)(۲) چشم پوشي کول ـ د چا عېب يا د غلطۍ نه اعرض کول درګزر کول ـ

**ــــ الوځے کول**:- (ق) ـــ پر راکښل:- (ق) کنايه: چاته ډير په قهر او غضب کېدل ـ ستر ګې راوبنکل په چا ـ

**ــــ پر لګېدل**:- ناڅاپه په نظر په چا يا په څۀ ځيز برابرېدل ـ

**ــــ پر سر دربدل**:- (ق) کنايه: په قهر او په غضب کښې کېدل ـ

**ــــ پرمښتل**:- (ق)(وـــ ستر ګې لګېدل)

**ــــ پړسول**:په ډېره ژړا په ستر ګو کښې پړسوب پيدا کېدل ـ ډير زيات ژړل ـ

**ــــ پورته کول**:- (چاته) ليدل ـ نظر اچول ـ

يو زمان که مې داستا ليدل نصيب شي
نور به ستر ګې پورته نۀ کړم ګلستان ته (خوشحال)

ويښېدل ـ بيدارېدل ـ

د رحمان بخت به هالۀ د خوبه ويښ شي
که تۀ ستر ګې ورته پورته کړې له خوابه (رحمان)

**ــــ پوشل**:- ستر ګې پټول ـ

د خفاش ستر ګې پوشلې
پـــه تيـــاره وخوښېدۀ (حافظ)

**ــــ پوښل**:ستر ګې پټول ـ پابندول ـ

مــــه پـــــوښه زاهـــــد ه د ښه مخ د نندارونه
ستر ګې چې دا کار دے په فتویٰ د عشق مباح (خوشحال)

**ــــ په بېره وهل**:- ستر ګې پټول ـ د چا د نظر د وړاندې د بې حيائې يا څۀ بد کار کول ـ بې حيا کېدل ـ

**ــــ په ښو نه درنبرې**:- متل دے ـ چې خپل خپلوان او عزيزان يا محبوب په چانۀ بوج کېږي ـ

**ــــ په تندې لګېدل**:- اشنا سړے نا اشنا کېدل ـ پېژند ګلو سړے د مطلب د پوره کولو نه پس پېژنګلو کېدل ـ بې وفائي کول ـ بې اعتنائي کول ـ

**ــــ په ستر ګو پسې ځي**:- ستر ګې اشنا ستر ګو له ورځي ـ چې چاسره د چا تعلق يا مينه وي نو پښې ئې هم هلته ځي ـ

**ــــ په سوځل/سوزل**:- (۱) حسد کول چاسره (ق)(۲) حسرت او افسوس کول (ق) (۳) زړۀ سوځول ـ ترس خوړل په چا ـ همدردي پيدا کېدل

**ــــ ستر ګې په لار**:- په انتظار ـ

**ــــ په لور ختل**:- د چا د راتلو ډير انتظار کول ـ

**ــــ په وسمه کول**:په ستر ګو رانځه لګول ـ

رړند که ستر ګې په وسمه کالا پېغور (خوشحال)

**ــــ تتبدل**:- نظر تتېدل ـ نظر کمزورے کېدل ـ ځيزونه تت تت ښکارېدل ـ

**ــــ تخېدل**:- (ق) شرم او حياء په چا غالبه کېدل ـ

**ــــ تړل**:- په ستر ګو پټۍ تړل ـ چې څۀ ځيز نشي ليدے ـ (عماماً د ماشومانو په لوبو کښې داسې کولے شي)

**ــــ تړل**:- (اور، در، راسره) په سودا (خريدو فروخت) کښې دوکه ورکول ـ

**ــــ تورول**:- (۱) په ستر ګو کښې رانجه اچول ـ (۲) سنګار کول ـ (۳) بل له په

سترګو کښې رانجهٔ اچول ـ (۴) (دچا) په سترګو کښې خاورې اچول دوکه ورکول ـ

**ــــ تورېدل**:ـ(۱) په سترګو کښې رانجه اچولے کېدل ـ(۲) په سترګو تيارهٔ راتلل سرګرځېدل ـ (۳) د کوم کار نه تېښتنه کول ـ څهٔ کار کښې شوق نهٔ پاتې کېدل ـ (ق)

**ــــ تورېدل**:ـ (په چا) ښېګړه کېدل ـ فائده رسېدل ـ

**ــــ ټيټول**:ـ(۱) سترګې ښکته ښکته کول ـ ښکته ښکته کتل ـ د شرم او حيا ـ يا د خجالت پـه وجـه کـوز کتـل ـ (۲) (دچـا) شـرمنده کـول ـ ملامـت کـول ـ (۳) بدفعلي کول ـ (۴) چاسره احسان کول ـ نيکي کول ـ

**ــــ ټيټېدل**:ـ (۱) سترګې ښکته کېدل ـ ښکته ښکته کتل ـ د شرم ـ حيا او د ملامتې له کبله پورتـه نهٔ کتـل ـ (۲) شرمنده کېدل ـ ملامتـه کېـدل ـ (۳) د چاد احسان لاندې کېدل ـ (۴) بد فعلي کېدل ـ

**ــــ جګول**:ـ (وــــ سترګې پورته کول)

**ــــ جګې نيول**:ـ (۱) پورته کتل ـ د خوشحالۍ اظهار کول ـ (۲) چاته د طبعې په نظر کتل ـ چا نه توقع کول ـ (۳) د چاپه حال په زړهٔ کښې غولېدل ـ

**ــــ جګې ورته نيول**:ـ (ق) کنايه:اميد او توقع کول د چانه ـ سترګې نيول (چاته) توجه کول ـ

**ــــ جګې ونيول وچاته**:ـ انتظار کول ـ لارې ته کتل ـ لکه سترګې مې درته جګې نيولې وې چې رابه شې ـ

**ــــ جن**:ـ(ج+ن) (صفـ مذ ـ مو ـ جنه ـ ج:جنې) هغـه ماشوم بچې (يا د حېوان بچې) چې ډېر زيات ښلے وي ـ او د نظر کېدو وېره ئې وي ـ

**ــــ چوچي کول**:ـ سترګې نيمې پټول ـ سترګې لکه د چوچي سرې نيمې بندول

**ــــ څلور کېدل**:ـ ډېر انتظار کول ـ

په ارزو دې د نرګس سترګې څلور شوې
غنچه سرهٔ، د زړهٔ په وينو کښې غرقابه (رحمان)

**ــــ څيرېدل**:ـ بې حيا کېدل په سترګو کښې شرم لحاظ نهٔ پاتې کېدل ـ سترګې شلېدل ـ

**ــــ څيرے کېدل**:ـ (وــــ سترګې شلېدل)

**ــــ ختل**:ـ (ق) په انتظار يا په طمع کتل ـ لغړاند سترګې نيول ـ

**ــــ خړوبول**:ـ سترګو تـه اوبـهٔ ورکـول ـ کنايـه ده د ښائست ـ او جمال محفوظ کېدل

**ــــ خړول**:ـ (وــــ سترګې بدلول ــــ خړې خړې اړول:ـ حېران حېران کتـل ـ د حېرت يا د مايوسۍ په نظر کتل ـ

**ــــ خوړل**:ـ (۱) رندېدل ـ (۲) عموماً د ښېرې په طور وئيلے شي ـ وــــ سترګې وخورې ـ نظر نه محرومه کېدل ـ سترګې نهٔ پاتې کېدل ـ

**ــــ خوږول**:ـ (په چا) د چاپه کتلو سترګې خوږې (شېرنې) کول ـ د چا پـه دېـدن زړهٔ ښهٔ کول ـ د زړهٔ اطمينان کول ـ

**ــــ خوږېدل**:ـ (پـه چا) (۱) د چا پـه ليدو سترګو تـه خوږوالے (شيريني) رسېدل ـ مينه پيدا کېدل ـ (۲) د چا په ليدو محسوسه ول ـ چې دا سړے ما وړومبے هم چېرتـه ليدلے دے ـ وائي چې پـه تا مې سترګې خوږې شوې ـ يعني پيژنګلو يه راته ښکاره شوې ـ

چې ما کړې په جهان کښې رڼا سترګې
بې له تا مې خوږې نهٔ شوې په چا سترګې (خوشحال)

**ــــ خوږے کول**:ـ تماشه کول ـ معشوق ته کتل ـ (ق)

**ــــ داوزه**:ـ ښېره ده ـ خو طنزاً استعمالېږي ـ (وــــ سترګې وخورې)

**ــــ د برقې (برقعې)**:ـ په برقه کښې سترګو ته مخامخ جالۍ ـ

**ــــ درلودل**:ـ (ق) (۱) عقل پوهه لرل ـ(۲) اميد لرل ، طمع لرل ـ (۳) انتظار کول

**ــــ درنول**:ـ (ق) بدنيتي کول ـ نيت خرابول ـ

**ــــ درنېدل**:ـ (ق)(۱) مجازاً ـ چاتـه نيت خرابـول ـ بدنيتـه کېـدل ـ لکـه :د هغـه سترګې احمديه ـ درنې شوې ـ (۲) څهٔ څيز په نظر نهٔ رتلل ـ

**ــــ درېدل**:ـ (ق) کنايه :د ساه ختو وخت ـ د نزع او احتضار حالت ـ

**ــــ د سترګونه شرمېږي**:ـ سړے چې بـل سړي تـه مخامخ شي نو پـه سترګو کښې ئې حيا پېدا شي ـ او وران يا غلط کار نهٔ کوي ـ

**ــــ د غوږ ښودې (شرمېږي)**:ـ په داسې موقع وئيلے شي چې دشرم او حيا لـه کبلـه حقه خبره کول ګران شي ـ

**ــــ د عوښو دې (نهٔ شرمېږي)**:ـد لغت اضداد دے يعني د چا مخکښې هر رنګه خبره کولو کښې نهٔ شرمېږي ـ

**ــــ د لږ ګو کول**:ـ (ق)(۱) بې شرمه کېدل ـ شرم حيا نهٔ پاتې کېدل لحاظ پاس نهٔ پاتې کېدل ـ (۲) څهٔ څيز د چانه په خجالت سره غوښتل ـ

**ــــ دورکې شه**:ـ سترګې وخورې ـ څوک چې څهٔ ښهٔ يا ښکلے څيز تـه ښغ ښغ ګوري او ددغې څيز د نظره کېدو وېره وي نو ورته وائي ـ

**ــــ دووينم**:ـ د چا په ليدو د ډېرې مينې نه وئيلے شي ـ

**ــــ ډومارل**:ـ (ق)سترګې ښکته لرل ـ د شرمه کوزکتل ـ

**ــــ راوښکل (په چا)**:ـ کنايه:چاته ډېر زيات په قهر او غضب کېدل ـ رعب کښېنول (په چا)

**ــــ پ**(ق)(ر+پ)(پ تر ـ اس ـ ظرف)د سترګو په رپ کښې په يوه لحظه کښې ـ

**ــــ رډے راختل**:ـ کنايه:ډېر حېرانه او پرېشانه کېدل ـ

**ــــ رډے رډے کول**:ـ (ق) سترګې پورتـه پورتـه کـول ـ کنايـه:خپل هېبت او زړهٔ ورتوب ښکاره کول ـ

**ــــ رڼا کول**:ـ سترګې رونول ـ سترګې پرانستل ـ

**ــــ رنول (په چا)**:ـ(۱) د چاپه ليدلو په سترګو کښې (رڼا تطر) پيدا کېدل ـ (۲) ډېره زياته مينه او محبت لرل ـ (چاسره)

**ــــ رڼې کول**:ـ سترګې روښانه کول ـ

ما چې ستا په جمال سترګې کړې خوږې
ښکلي واړه ستــــا د مــــخ دي د ښې (خوشحال)

**ــــ سپخېدل**:ـ سترګې پرانستې کېدل ـ د نوي زېږېدلي ماشوم پـه اول ځـل سترګې غړول لکه سترګې مې سپخېدلے دي ـ

**ــــ سپينېدل**:ـ (۱) د سترګو تـور نهٔ پـاتې کېدل پـه کاتـهٔ کاتـهٔ د سترګو تور ورکېدل مجازاً ډېر زيات او ډېر اوږد انتظار کول ـ

په يوسف پسې يعقوب سپينې کړې سترګې
لاپــــه تاپسې سپين نه دے د ريد نورمې! (سعيد خټک)

(۲) په سترګو کښې حيا نهٔ پاتې کېدل ـ بې حيا کېدل ـ بد لحاظه کېدل ـ لحاظ پاس نهٔ کول ـ

**ــــ سترګې نيول**:ـ بقې سترګې نيـول ـ حېران پـاتې کېـدل ـ پـه حېرت کښې سترګې وازې پاتې کېدل ـ په حېرانتيا سره کتل ـ

**ــــ سرې اوښتې**:ـ بهر ته راوتې سرې سترګې هغه سترګې چې د قهر غُصې يا نشې په وجه سرې شوې او په بله اوښتې دي ـ

سرې سترګې آوښتې لکه ډېر خونونه کړې (خوشحال)

**ــــ سرې کول**:ـ (۱) بدنيتي کول ـ (ق) (۲) مئينېدل ـ عاشق کېدل ـ (ق) (۳) طمع لرل ـ (ق)

**ــــ سرې کېدل**:ـ(۱) د غُصې نه سترګو کښې وينې راتلل ډېر زيات پـه قهر کېـدل ـ (۲) پـه ژړا ژړا سـترګې سـرې کېـدل ـ ډېـر زيـات ژړل ـ (۳) زړهٔ ورکېدل ـ (۴) بدنيته کېدل ـ (ق)

**ـــ سرې کېدل**:۔ (بنو وزیر) په چا مئینېدل ۔ عاشق کېدل ۔ (د فلانې هم سترګې سرې شوې دې خو پوهېږم نه چې چېرته)

**ـــ سول (سوځل) په چا**:۔ چا سره همدردي پیدا کېدل ۔ لکه: د زید په احمد سترګې سوځي ۔

**ـــ سیورے (دي)**:۔ سترګې مړې دي ۔ مستغني دي ۔

کــه مې لاس لکه دریاب له درو تش دے
ولې سترګې مې دریاب غوندې دي سېرې (خوشحال)

**ـــ شلېدل**:۔ په سترګو کښې حیاء یا لحاظ پاس نۀ پاتې کېدل بې حیاء کېدل ۔ بې شرمه کېدل ۔

**ـــ ښخول**:۔ چاته (یا څۀ ځیزته) په یو نیپ کتل ۔ نبغ کتل ۔ او سترګې نۀ اړول ۔

**ـــ ښکته اچول**:۔ سترګې ښکته کول ۔

**ـــ ښکته کول**:۔ (وـــ سترګې ټیټول)

**ـــ ښتکه نیول**:۔ (وـــ سترګې ټیټول)

**ـــ ښکلو**:۔ د ډېرې مینې اظهار کول ۔

**ـــ ښئیل**:۔ رعب کښېنول ۔ دباؤ اچول ۔ ویرول ۔

**ـــ غړول**:۔(۱) سترګې پرانستل ۔ سترګې واکول ۔ لیدل کتل ۔ ویښ اوسیدل (۲) په غورسره کتل ۔ ښۀ او بد پېژندل غور او فکر کول ۔

وصورت وته ئې مه غړوه سترګې
د خپل زویه خو عمل ګوره کرتوت (خوشحال)

**ـــ غړول (څۀ ته)**:۔(۱) په غټېو غټېو یا غړېدلو سترګو کتل ۔ (۲) حېرانېدل ۔ په حېرت سره ۔ کتل ۔

وګفتار وتــه یې مه غړوه سترګې
په کرده په عمل ګوره کس نا کس (خوشحال)

**ـــ غړېدل**:۔ ژوند تېرول ۔

څــو دي دوه سترګې غړېږي په جهان کښې
تنــداره پـــه هر ساعت د خپل نګار کړه (رحمان)

**ـــ غوړول (په لار کښې)**:۔ د چاپه راتګ په ډېره مینه انتظار کول ۔

**ـــ فرش کول (چاتــه)**:۔سترګې غـوړول د چاپـه لار کښـې ۔ د هر چا پـه راتـګ د ډېرې زیاتې مینې اظهـار کول ۔ د راتلونکي میلمـه پـه ډېـره مینـه او عـزت هر کلے کول ۔ سترګې په لار ه غوړول (چاته)۔

**ـــ کحلے**:۔ په رنجو تورې سترګې ۔ مطلق تورې سترګې ۔

**ـــ کښته/ښکته اچول یا ځړول**:۔ (ق)(۱) د میلمه په مخکښې بې همتي کول (۲) شرمنده کېدل د ملامتې نه جواب نۀ ورکول ۔

**ـــ کښته کول (ور)**:۔ (ق)(۱) شرمنده کول ۔ ملامته کول ۔ (۲) شرمول ۔

**ـــ کښل/وښکل**:۔ قهر کول ۔ غُصه کول ۔ خپل قهر غُصه ښکاره کول ۔

**ـــ کلکول**:۔(۱) د سترګو نه لحاظ ایستـل بـد لحـاظي تـه تیارېدل (۲) خبره نۀ منل ضد کول ۔

**ـــ کـول**:۔ سترګې پیـدا کـول ۔ عقـل پوهـه حاصـلول ۔("سترګې کېـدل" نـه د محاوره پیدا شوې وه)

**ـــ کولکونو ته لوئېدل**:۔ ډېر زیات مانده کېدل ۔ ډېر زیات کمزورے کېدل ۔

**ـــ کوهیو یا کوهیانو ته پرېوتول**:۔ ډېر زیات کمزورے کېدل ۔

**ـــ کېدل**:۔ سترګې رڼې کېدل ۔ کنایه: عقل زده کول ۔ پوهه راتلل ۔

د رحـــــمان په عاشقۍ کښې سترګې وشوې
چې څوک وائې عاشق ړوند دے هغه خوار شه

**ـــ ګنډل**:۔ (۱) باز وغېره له سترګې ګنډل ۔ (۲) سـترګې بنـدول عمومـًا پـه نفي کښې استعمالېږي ۔ چې سترګې خو نشم ګنډلے ۔ یا سترګې وګنډم څۀ (یعني د کتلو نه خو نشم اوړېدے)

**ـــ لارې ته سپینېدل**:۔ لارې ته په کتلو کتلو د سترګو تور الوتـل ۔ بې کبچه ډېر انتظار کول ۔

**ـــ لارې تـه نیـول**:۔ د چـا د راتلو انتظار کښې مسلسـل لارې تـه کتـل ۔ مطلق انتظار کول ۔

ماله د سترګو تاوان راکړه
چې تۀ به نۀ وې ما به لارو ته کاتنه (ټپه)

**ـــ لرل**:۔ (وـــ سترګې درلودل)

**ـــ لګول** (چاسره):۔ سترګې یا نظر سره برابرول ۔ ملاقات کول ۔

**ـــ لګېدل**:۔ معمولي شان خوب راتلل ۔ لږ شان خوب کول ۔

**ـــ لګېدل** (چاسره):۔ سترګې یـا نظر چاسره برابرېـدل ۔ ملاقـات کېـدل ۔ لیـدۀ کاتۀ کېدل ۔

**ـــ لوړول**:۔ (ور) سترګې اُچتول ۔ لکه د زوي پـه وادۀ کښې دې سترګې رالـوړې کړې ۔

**ـــ لوئېدل (چاته)**:۔ د چا (یا د څۀ ځیز) ډېر اشتیاق لرل ۔

**ـــ لیدل (دچا)**:۔ رعب لیدل د چا ۔ د باؤ محسوسول ۔

**ـــ مرغۍ مرغۍ کېدل**:۔ څۀ ځیز په نظر نۀ راتلل ۔

**ـــ مړې اچول**:۔ (ق) (وـــ سترګې کښته اچول)

**ـــ مړېدل**:۔ (۱) د څۀ ځیز شوق نۀ پاتې کېدل ۔ (۲) طمع ۔ حرص نۀ پاتې کېدل ۔

**ـــ مـړې مـړې اړول**:۔ (۱) پـه سـترګو کښـې رونـق او ژونـد نـۀ پـاتې کېـدل ۔ د مایوسۍ او د نا اُمیده کېدلو نخښـه ۔ (۲) په معشـوقانه نظر کتـل ۔ (۳) پـه شرمندګۍ او جحالت سره کتل ۔ ملائمه کېدل ۔

**ـــ نژدې کول**:۔(را+در ، ورسره) د نژدې نه کتل ۔ په غور سره کتل ۔

زړۀ تــه مــې سترګې رانـژدې کـړه
چې پکښې ووینې د وینو سرۀ ډنډونه (ټپه)

**ـــ نغلاند**:۔ وړې سترګې ۔ نغړاندې سترګې ۔

پـــه دېدن د یـار مړې شوې
د خوشحال نغلاندې سترګې

**ـــ نغلانـد اړول**:۔ سترګې خوارې خوارې اړول د وړو سترو پـه شان د یخوا اخوا کتل

اوس خوشحال خټک خپل یار په غېږ کښې وینـو
رقیـــبان دې ستـــــــــرګـــې اړوي نغـــــلاندې!

**ـــ نۀ اباسل (دچانه)**:۔ (۱) چاته په یونیپ نبغ نبغ کتل ۔ (۲) هـر وخـت پـه نظر کښې ساتل ۔

**ـــ نه پرروښېدل**:۔ (ق) (۱) څوک ډېر زیـات بـدې کېـدل ۔ او هغـه سره ښـۀ کول نـه غوښتل ۔ (۲) ډېر زیات ښکلے کېدل ۔

**ـــ نه پوره ته کول**:۔(۱) ست نۀ کول ۔ (۲) شرمنده کېدل ۔ ملامته کېدل ۔

**ـــ سترګې**:۔ نۀ درلودل (ق) (۱) عقـل او فهـم نـۀ لـرل (۲) ړونـد پـودل (۳) شرمنده او ملامته بودل ۔

**ـــ نۀ سوځېدل**:۔ (دچانه)(وـــ سترګه نۀ سوځېدل)

**ـــ نۀ غړول**:۔ (دچانه) سترګه اړول ۔ په یو نیپ کتل ۔

**ـــ نۀ لـرل**:۔ نظر نۀ لګېدل ۔ وړاندې څۀ نۀ لیـدل ۔ مجازًا عقل فهم نـه کـار اخستل د کم عقلۍ خبره کار کول ۔

**ـــ نۀ لرې برې کول**:۔ کنایه:بې حیا بې شرمه بودل ۔

**ـــ نه مړېدل**:۔خواهشونه نۀ پوره کېدل ۔ حرص نۀ پوره کېدل ۔

**ـــ نیسل (نیول)**:۔ سترګې بندول ۔ سترګې د کتلو نه منع کول ۔

که صورت ژغوري له غمه
سترګـــې نیسه له کتلو (خوشحال)

ـــ **نیول**:- انتظار کول.

همېشه سترګې نیولې وخپل ښکار ته (خوشحال)

ـــ **نیول (چاته)**:- (۱) چا ته د طمع په نظر کتل. اُمید لرل طمع کول. توقع ساتل. (۲) چاته د حسد په نظر کتل.

ـــ **واکول**:- سترګې روڼول. نظر اچول.

ړوند بدتر دے چې څۀ نۀ وینې پـه سترګو
نـه چـې سـترګې په پردي حرام کا وا (رحمان)

ـــ **وبله اوښتې**:- د ډېرې نشې یا د خمارو په وجه راوتې سترګې.

په خمار ئې سترګې سرې وبله اوښتې
نیمـې شپې راباندې راغله عنا ګفان (خوشحال)

ـــ **وچاته برګول/برګې نیول**:- چاته قهر او غُصه کول.

ـــ **وچې کول /وچه ول**:- د سترګو اوښکې اوچول. د ژړا نه بس کول.

زۀ خوشحال که خپل مئین په ژړا مومم
پـه ژړا به پسې نه کړم سترګې وچې

ـــ **وخورې**:- د ښېرې جمله ده. په داسې موقع وئیلے شي چې څوک څۀ ښـۀ څیز ته نېغ نېغ ګوري. ورته وئیلے شي چې د نظره ئې نۀ کړې. په داسې موقع وئیلے شي چې څوک په ړنو سترګو مخامخ څیز نۀویني. ړوند شـې (هم وائي.

ـــ **وراوښتل**:- (ق) (۱) ناڅاپـه پـه څۀ څیز نظر برابرېدل (۲) طمع کول. اُمید لـرل (دچانه)

ـــ **ورپورته کول**:- (ق) (وـــ سترګې ورلوړول)

ـــ **ورته پټېدل**:- (ق) په قهرېدل چاته. په غصه کنبې کېدل.

ـــ **سرتلل**:- سترګې پټېدل. خوب ورتلل.

ـــ **ورته لوئېدل**:- (ق) د څۀ څیز ډېر زیات. مشتاقه کېدل.

ـــ **ورلوړل**:- (۱) عزت ورکول. ممتازه کول. (۲) څوک د ملامتې نه راویستل.

ـــ **وهل**:- په سترګو اشارې کول.

ـــ **ئې پټې دي**:- ناتجربه کار دے. لائې څۀ تاؤده سارۀ نۀ دي لیدلي. لاورتـه څۀ تکلیف نۀ دے پېښ شوے.

ـــ **ئې کاښې چوي**:- ډېر نظر باز دے. داسې نظر ئې لګي چې کاڼي هم پرې چوي.

ـــ **یو سر بل سرګول**:- یو خوا اخو کتل.

ښکـاري چې غرڅه ولې ورته ګوري
ته، یو سر بل سره مکړه لـه ما سترګې (خوشحال)

ـــ **اوچتې**:- (وـــ هسکې سترګې)

ـــ **بد**:- (ب+د+س+ت+ر+ګې) (پ تر. صف) بې شرم. بې حیا (ق)

ـــ **بدې**:- بد نظر. هغه نظر چې په چا بد اثر پرې باسي د نظره کوؤنکے.

ـــ **برګ**:- (ب+ر+ګ) (اس. صف) (چغر سترګې)

ـــ **برندې نیول**:- چاته په غُصه او قهر کتل.

ـــ **بقې**:- (وـــ وازې سترګې)

ـــ **بقې نیول**:- (وـــ وازې سترګې نیول)

ـــ **بوږ**:- (۱) چوچې، چوچ سترګے. (۲) کم نظرے. هغه سړے چې نظر ئې کمزورے وي.

ـــ **بې نوره**:- هغه سترګې چې رڼا نۀ لري. ړندې سترګې.

ـــ **تاغ**:- (تا+غ) (صف) هغه سړے چې سترګې ئې بهر ته راوتې وي. رډ سترګے.

ـــ **چوچ**:- هغه سړے چې سترګې ئې چوچې وي.

ـــ **څیرې**:- څیرې شوې. شلېدلې سترګې. مجازاً بې حیا او بې شرمه سترګې

ـــ **د زړۀ**:- بصیرت. د زړۀ په نظر معلومول.

ـــ **د کوګولے**:- هغه ډوغل چې سترګې مړ دکې پکښې ځاے شوے وي.

ـــ **د مړدکے /ګولی**:- د سترګې اصل برخه چې په شکل کښې غونډه وي.

ـــ **د سر**:- عامې سترګې چې په سر کښې د حیوان د لیدلو د پاره لګېدلې وي. چشم سر. (د زړۀ د سترګو. بصیرت. په مقابله کښې).

ـــ **د عقل-لرل**:- د زړۀ بصیرت لرل.

ـــ **د کباونو خوړل**:- کنایه: خوب نۀ ورتلل. نۀ اودۀ کېدل. طنزاً د هغـه سړي پـه حقله وئیلے شي څوک چې د شپې ناوخته پورې ویښ وي. خوب نۀ ورځي. او نور هم د خوبه وباسي. د کبانو سترګې همیشه غړېږي.

دوه ـــ **څلور کول**:- دوه سترګو نه د څلور سترګو کار اخستل. مجازاً ډېر پـه غور سره کتل ډېر محطاط کېدل.

دوه ـــ **څلور کول**:- ډېر انتظار کول.

**ډغے یا تغے** :- (وـــ وازې سترګې)

**رډ**ـــ: (ر+ډ) تغ سترګې. هغه سړے چې سترګې ئې بهر ته راوتې وي

ـــ **زرګې**:- (۱) د زرګې په شان سترګې. ښکلې سترګې. (۲) بې وفا سترګې

ـــ **زېړے**:- (ز+ې+ړ+ے) (پ تر. صف) شرمنده. ملامته. خجد (ق)

ـــ **سپینې**:- بې حیا سترګې. بې شرمه. بد لحاظه سترګې.

**سرې** ـــ **ګرځېدل**:- بې پروا او بې وېرې ډېرې ګرځېدل. سپین باز ګرځېدل. (چا چې جرم یا ګناه نۀ وي کړې هغـه د چانـۀ خو څۀ پراه لري. نۀ د چانه وېرېږي. وائي چې مجرم نـه ئې نو سرې سترګې ګرځه. په غُصـه او قهر کښې ګرځېدل

ـــ **سمخ**:- (س+م+خ) (پ تر. صف) بې حیا. بې شرم. سپین سترګے.

**سوالګرے** ـــ:- (وـــ سوالي سترګې)

**سوالي** ـــ:- هغه سترګې چې د دنیا نـه خپل ضروریات غوښتونکي وي. سوالګرې سترګې)

**شلېدلې** ـــ:- څیرې شوې سترګې. مجازاً بې حیا او بې شرمه سترګې وائـي چې سترګې ئې شلېدلې دي یعني ډېر بد لحاظه او بې شرمه سړے دے.

**شین** ـــ:- (۱) هغـه کـس چـې سـترګې ئـې شـنې (نیلـي) وي. (۲) یـورپین. پیرنګي.

ـــ **غټې**:- ښکلې سترګې. ښائسته سترګې (متل) د مرزوئې سترګې غټې وي.

ـــ **قړاغې**:- (وـــ وازې سترګې)

ـــ **قړاغ**:- (ک+ړا+غ) (۱) هغه سړے چې سترګو کمزورې لـه کبله پرېوتې وي. (۲) وازې سترګې.

ـــ **کلک**:- بدلحاظه. بې شرمه. بې حیا.

ـــ **کوز**:- (۱) هغه سړے چې له شرمه، یا د ملامتې نه ښکته ګوري. شرمنده. ملامته. (۲) هغه سړے چې د چا د احسان د لاندې وي. احسان مند.

ـــ **کوږ**:- (کو+ږ/ږ) (پ تر. صف) کانګ. چقے. کړنیګ. بړنیګ.

ـــ **مړ**:- (م+ړ) (اس. صف) بې شرم. بې حیا سړے. سپین سترګے.

ـــ **لړغیچنې**:- وـــ مراوې سترګې)

ـــ **مړے**:- نیم پرانستې سترګې. نیم دا سترګې. معشوق ته نظر.

ـــ **مستې/میخوارې/شرابې/سیکونې**:- پرورې خمارې مخمورې سترګې د هغـو سترګو صفت دے چې لکه د شرابي سړي سرې فاغ لري.

ـــ **ملالې**:- نیم پرانستې سترګې. نیم وا سترګې د سترګو معشوقانه انداز

ـــ **نرګسي**:- هغه سترګې چې د نرګس شهلا په شان ښکلې وي.

ـــ **نبغ**:- (وـــ کلک سترګے)

ـــ **سترګې وازې**:- پرانستې سترګې. بقې سترګې چې د حیرانتیا لـه کبله وازې پاتې شي.

**ـــ وږی**:ـ هغه سړے چې سترګې ئې وازې وي ـ حريص ـ هرصناک ـ طامع ـ

**ـــ وږې**:ـ حرصناکې سترګې ـ

وږې سترګې د اسمان څۀ هسې نه دي
چـې څوک پرېږدي سلامت په دا دنيا (رحمان)

**ـــ وينځلې**:ـ بې حيا سترګې ـ بد لحاظه سترګې ـ بې شرمه سترګې ـ

**ـــ هسکې**:ـ اوچت کتونکې سترګې ـ د فخر او کاميابئ وغېره علامت دے ـ

**ـــ سترګې**:ـ (س+ت+ر+ګي)(اس ـ مذ ـ ج ګي) پـه سـترګو چـې فاسـده مـاده پيدا او د نوک په شان خوره شي ـ ناختک ـ ناغه (مروت)

**سترګيز**:ـ(س+ت+ر+ګي+ز)(و ـ اس فا ـ مذ ـ مو ـ سترګيزه ـ ج :سترګيزې)د سترګو خاوند ـ سترګور ـ پوهان ـ هوښيار ـ

**سترلنګ** :ـ(س+ت+ر+ل+ن+ګ)(وـــ سترلنګ)

**سترمې**:ـ (س+ت+ر+مې)(اس ـ جم)پلوياني جينکۍ ـ د کور د پړدې ـ زنانه

**سترنج**:ـ (س+ت+ر+ن+ج)(ف ـ اس ـ مذ)(۱) شطرنج مشهوره لوبه ـ (۲) دوه درې قسمه غلې سره ګډې ګړې ـ ګډواله ـ (اق)

**سترنجي**:ـ (س+ت+ر+ن+ج+ی)(اس ـ مو)درۍ په فرش غوړولې شي ـ

**سترواله**:ـ (س+ت+ر+وا+لے)(اس ـ مذ)لوے والے ـ بزرګي ـ عظمت ـ

**سترول** :ـ (س+ت+ر+و+ل)(مص)(۱) لوئيول ـ لوئي ورکول ـ (۲) مشر جوړول ـ سردار (مند) ـ

**سترونګ** :ـ(س+ت+ر+و+ن+ګ)(وـــ سترونه)

**سترونه** :ـ (س+ت+ر+و+ن)(حمص)(۱) لويه ونه ـ وده ورکونه ـ (۲) لوئي ورکونه ـ لوئي (مرتبې وغېره) ته رسه ؤنه ـ

**ستروؤنکے** :ـ (س+ ت + ر+ وؤ + ن +کے)(اس فا ـ مذ ـ ج ـ کي) (۱) لويه وؤنکے ـ لـوے کـوونکے ـ پالنـه ـ رازنـه کـوونکے ـ (۲) لـوے ورکـوونکے ـ مرتبـه زياتونکے ـ

**سترو**:ـ (س+ت+ر+و+ے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ي) چغالې مېوه چې ردي او بې کاره شوې وه ـ

**ستروے** :ـ (س+ت+ر+و+ے)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ وي) د مېوويو حشره ـ چينجے چې په مېوه کښې پيدا کېږي ـ

**سترووي** :ـ (س+ت+ر+وي) (اس ـ مو) لوئي ـ تکبّر ـ

**ـــ کول**:ـ لوئي کول ـ تکبر کول ـ کبر کول ـ غرور کول ـ (ق)

**ستره**:ـ (س+ت+ر) (ص ـ مو)د ستر مؤنث صيغه ـ لويه ـ

**ـــ مېره**:ـ (اق) (ے+ر) (پ تر ـ اس ـ مو ـ ج ـ ے)براعظم ـ لويه وچه (اق)

**سَتره** :ـ (س+ت+ر) (ق ـ اس ـ مو ـ ج :سترې)دوئې بند ـ د مخ رومال ـ لوپټه ـ

**سُتره** :ـ (سُ+ت+ر) (ع ـ اس ـ مو ـ ج ـ سترې)هغه څيز (لرګے وغېره) چې نمانځه په وخت خپل مخکښې کښېښودے شي چې څوک مخکښې تېرېږي نو چې په مينځ کښې حرج نۀ راځي ـ دې ضرورت په ډاګ مېدان کښې دے په (جومات) کښې نۀ وي ـ

**سُتره** :ـ (س/صو+ت+ر)(ه ـ صف)صفا ـ پاک ـ

**سترګي**:ـ (س+ت+ر+ګي)(اس ـ مو)ستره توب ـ پاکيزګي ـ

**ستري**:ـ (س+ت+ر+ي)(ق ـ اس ـ مو)(و ـــ ستری)

**ستري** :ـ (س+ت+ري)(ف ـ مو ـ ج ـ ی) عمومًا دا لفظ د نفي توري (بې) سره راځي ـ لکه بې ستري کېدل يا بې ستري کول ـ

**سترے** :ـ (س+ت+ر+ے) (اس ـ مو) افسانه ـ قيصه ـ ګپ شپ ـ ګپې شپې ـ مواسه د پخوانو خلقو قيصې ـ افسانې ـ اساطير ـ

**سترے** :ـ (س+ت+ر+ے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ستري)(۱) د غنمو يا د ګياه ګېډے يا ډېرۍ چې په يو لاس (غېږ) کښې راشي ـ (۲) (سترۍ) د بني ادم يا د حېوان څرمن چې ورسته شوې وي ـ (ق)

**ـــ ټکو کول**:ـ (۱) وهل ـ ټکه ول ـ (۲) کوتره کول ـ د سېلمې وژل يا ژوبلول برباد ول ـ تباه کول ـ

**ـــ ټکو کېدل**:ـ(۱) وهلے ټکـؤلے کېدل ـ (۲) د سېلمې وژل کېدل يا زخميان کېدل ـ (۳) برباد ېدل ـ تباه کېدل ـ

**ـــ ستربدل**:ـ (س+ت+رې+د+ل)(مص)(۱) لوے کېدل ـ لوئيدل (په عمر کښې) (۲) غټېدل ـ (په وجود يا حجم کښې)(۳) مرتبه وغېر کښې لوړېدل ـ ستربدنګ:ـ (س+ت+رې+د+ن+ګ) (وـــ ستربدنه)

**ستربدنه** :ـ(س+ت+رې+د+ن)(حمص)لوے کېدنه ـ لوئيدنه ـ

**ستربدونکے** :ـ (س+ت+رې+دو+ن+کے)(اس ـ فا ـ مذ ـ ج ـ کي)لوے کيدونکے ـ لوئيدونکے ـ (په عمر يا مرتبه وغېره کښې)

**ستـري وتـري** :ـ (س+ت+رې+و+ت+رې)(اس ـ مف)(۱) وهلے ټکـؤلے ـ (۲) د يوې کورنۍ د ټولو وګړو په ځاے ناروغه کېدل او په کتونو کښې پرېوتل

**ـــ کېدل**:ـ (۱) وهلے ټکـؤلے کېـدل ـ (۲) د يـو ټبر د ټولو وګړو پـه يـو ځـاے د ناجوړتيا لکه کبله په کتونو کښې پرېوتل ـ

**سترے وترے**:ـ (س+ت+رې+و+ت+رې)(۱) خوارۀ وارۀ ـ تتر بتر ـ پرېشـانه ـ (۲) سترړے ستومانه ـ (۳) په يو بل لاندې باندې ـ

**ـــ پرېوتل**:ـداسې څملاستل چې لاسونه او پښې ئې خورې وي ـ شاولې واولې پرېوتل ـ

**سترتيا**:ـ (س+ت+ر+ت+يا)(اس ـ حمص) سترړے والے ـ سترتيا ـ

**سترول**:ـ( س+ت+ړ+و+ل)(مص)سترړے کول ـ

**سترړے** :ـ (س+ت+ړے)(صف ـ مذ ـ ج :سترړي) مانده ـ ستومانه د ډېر کارنه پس د بدن ستېدل مضمحل کېدل ـ (اُردو:تهکا هوا)

**ـــ ستومان**:ـ ډېر زيات کار يا مزل نه پس چې په وجود کښې سستي راشي ـ ماندګي ـ

سفر دې ډېر په مخکښې پروت دے بې توښې مه څه پرې
په دغـــــه لار کښې ډېــر عالم سترړے ستومان پاتې شي (حافظ)

**ـــ مه سې**:ـ(وـــسترړې مه شې)

**ـــ مه شې**:ـ(۱) د مېلمه په راتل د هر کلي په طور وئيلے شي ـ (۲) زميندار يـار نور خلق چې په کار کښې لګيا وي ـ او څوک په خوا کښې په لاره تېرېږي نو دغه الفاظ استعمالوي ـ ځيني خلق ددې په ځـاے "بنۀ چارې" هم وائي د ګڼو کسانو د پاره د جمعې صيغه (سترړي مشئ) استعمالېږي ـ (ددې جواب خوار مه شئ يا خوار مشئ دے)ـ

**سترړي مه شئ** :ـ (کول چاسره) چاسره بړه ګړه کول ـ بنۀ چارې وئيل هر کلے وئيل ـ

**ـــ کول**:ـد سترړے مشئ (سترړي مشئ/جواب خوار مشې)يا خوار مشئ) داے ـ بړه ګړه کول راشه درشه کول ـ جوړ تازه کول ـ

**سترړي ورځ** :ـ د محنت خوارۍ ورځ يا عمر ـ

**سترپيا**:ـ (س+ت+ر+يا)(اس ـ مو ـ ج :ګانې ـ وے)سترړے والے ـ ماندګي ـ

**ـــ اچول**:ـ (ق) سترړے والے لرې کول ـ ستوماني وباسل سستي او درماندګي لرې کول ـ

**ـــ پر اچول**:ـ (۱) ستوماني په چا ايستل يو وهم دے چې څوک سترړے سړے (مېلمه) راشي او هغه لاسونه خوارۀ کړي او خپله ستوماني وباسلو نه پس په چا لاس کېږدي ـ نو وائي چې ستوماني (سترپيا) ئې پرووېسته ـ (۲) (ق)

چې څوک مېلمه داسې كورته راشي چې نوې ماشوم په كښې زېږېدلے وي او دغه ماشوم ددغې ستړې مېلمه كوټې تـه ور وړے شي۔ نو وائي چې هغه ناجوړه كېږي او د ماشوم په حلقه وئيلے كېږي۔ چې فلانے پرې ستړيا وچوله۔

**ستړېدل** :- (س+ت+ړې+د+ل) (مص)ستړې كېدل۔

**ستغ** :- (س+ت+غ) (ص۔مذ۔مو :ستغه)نېغ شا لګېدلې۔ عموماً دا لفظ "ستوني" سره يو ځاے راځي يعني "ستوني ستغ" چې په زمكه وغېره پوره شالګېدلے وي۔

**ــــ ستونے پرېوتل**:۔ داسې پرېوتل چې پوره شا ئې په زمكه (يا كټ وغېره)پورې شا لګېدلې وي۔

**ستغ** :- (س+ت+غ) (صف۔مذ۔مو۔ستغه ج۔ستغې) (۱) تريخ چې په ذائقه كښې تريخوالے او سپوروالے لري۔(۲) هغـه سطحه چې هـواره نـه وي ناهمواره زين (۳) پـه غـرۀ وغېره كښې داسې ځاے يا لاره چې نېغـه بره ختلې ويه۔ نېغه چړهائي۔

مـــــا ئې دليدل كارونه،طور طور رفتارونه
پـه ورتلۀ ،په ستغ ختنه ،په تلۀ كفر ته زغېنته (خوشحال)

(۴) ترخه او ناګواره وينا يا خبره۔

**ستغه** :- (س+ت+غ(صف۔مو)د ستغ تانيث۔ عموماً سپوره سره راځي۔ يعني ستغه سپوره۔ (وـــ ستغه سوېره او تورې محاورې)

**ـــ خبره**:۔ (خ+ب+ر)سخته او ترخه خبره۔

**ـــ لاره**:۔ ناهمواره لاره۔ داسې لار چې پكښې لوړې ژورې وي۔

**ـــ لهجه**:۔ سخته لهجه۔ ترخه لهجه۔

**ستغې**:- (س+ت+غ+ې)(اس۔مو)يو مريض دې چې پـه مـرۍ كښې پړسوب پيدا شي۔وزغې۔ خناق۔

**ستغې**:- (س+ت+غې)(اس۔مذ۔ج۔ي)وزغې۔ د يو مريض نوم دے۔زهرباد۔ خناق۔

**ستګ** :- (س+ت+ګ)(اس۔مذ۔ج۔ونه)هغه ستن چې سورے نۀ لري ستنګ۔ (ع۔سنحاق)

**ستګوري**:-(س+ت+ګو+ري) (اس۔جم) ګړونجے۔كونجے۔غونجے۔كوټ۔

**ستل**:- (س+ت+ل) (قـو۔اس۔مـذ۔ج ـونـه) د اوسپنې لوښـے (د عربـۍ، سطل) نه مفغن كړے شوے دے۔بالټے۔يا د بالټې په شان لوښے۔

**ـــ**:۔(س+ت+ل) (مص)هوارول۔لوړې ژورې لرې كول۔

**ستلې** :- (س/سو+ت+ل+ې)(اس۔مو)د سنيو نـه جوړ غټ مزے۔چې عموماً بوجۍ پرې ګنډلې شي۔

**ستلے** :- (س+ت+لے) (ق)(اس۔جم)درې۔ هغـه تختـې چې د كـوټې چت پـرې ليكلې شي۔

**ـــ**:۔(س+ت+لې)(ص۔مذ۔ج۔:ستلې)هوار كړې۔لوړې ژورې لرې كړې

**ستم** :- (س+ت+م) (اس۔مذ)لينګه۔ د لينګېدو د وخت درد۔

**ـــ**:۔(س+ت+م) (ق۔اس۔مذ)(۱) ستن۔ د غشـي سـر چې د لينـدۍ پـه ژۍ باندې كښېښودے شي۔

**ـــ وهل**:۔ (ق) ستن وهل۔ انجكشن وركول۔

**ستِم** :- (س+ت+م)(و۔اس۔مذ۔ج۔ونه)ظلم زياتې۔جبر۔

**ستِم آباد** :-(ا+با+د) (ق تر۔مذ)(شعر) هغه ځاے چېرته چې ستم يا زور زياتې كېږي۔

**ـــ ايجاد**:۔ (اي+جا+د)(شعر) د ستم يا د زور زياتي بنياد كښېښودونكے۔

ډېر ظالم

**ـــ پرور**:۔ (پ+ر+و+ر) (اس۔مذ۔مو۔پروره۔ج :پرورې) ستم كوونكے۔ظالم جوركوونكے۔زور زياتے كوونكے۔ظالم۔

**ـــ ديده**:- (دي+د) (ف۔تر۔اس۔صف۔ج۔ګان)(شعر) هغـه چې ستم ظلم ئې ليدلے وي مظلوم۔

**ـــ زده**:۔(ز+د) (ف تر۔اس مف۔ج۔ګان) هغـه چـې سـتم يـا زور زيـاتـے پـرې شوے وي۔مظلوم۔

**ـــ شعار**:۔ (ش+عا+ر) (ف۔تر۔اس۔فا۔ج۔ان) هغه كس چې پېشه يا كار ئې ستم او جور كول وي۔ظالم (شعر)۔

**ـــ ظريف**:۔ (ظ+ري+ف)(عف تر۔اس۔نه۔مو۔ظريفه) هغه سړے چې په خندا خندا كښې ظلم كوي۔

**ـــ كش**:۔(ك+ش)(ف۔تر۔اس۔صف۔ج۔ان) هغه سړے چې ستم يا زور زياتے زغمي۔مظلوم۔

**ـــ كېش**:۔ (كې+ش)(ف تر۔اس۔نه۔مو كېشه)هغه كس چې خصلت خوئي يا ئې ستم كول وي ستم كوونكے۔ظالم

**ـــ ګر/ګار**:۔ (ګ+ر+/ګا+ر)(ف تر۔اس۔فا۔مذ۔ح۔ان) ســتم كـــوونكے۔ ظالم زور كوونكے۔ظالم۔

چې بادشاه ئې ستمګر شي،خلق خوار شي
خداے دې نـــۀ كـا ستمګر بادشاه د چا (خوشحال)

**ـــ ګري/ګاري**:۔ (ګ+ري/ګا+ري)(ف تر۔مـو۔ج۔ۍ) ستم ظلم۔جور۔زور زياتے

**ـــ ګستر**:۔ (ګ+س+ت+ر)(ف تر۔اس۔مذ۔مو ګستره)(وـــ ستم ګر)

**ستما**:- ( س+ت+ما)(وـــ ستم عا)

**ستمب**:- (س+ت+م+ب+ر)(انګ۔اس۔مـذ) د ميلادي د عيسـوي كـال نهمـه مياشت چې د دېرشو ورځو دي۔ددې مياشتې په دروېشتم تاريخ ورځ او شپه پخپله كښې برابر شي۔

**ستمبول**:- (س+ت+م+بو+ل)(اس۔مـذ)(۱) خوشبوي (خوشبوي چې هر وخت د بوينولو د پاره په لاس كښې وي) (۲) بوچړه۔مشنګه۔كال كونډے۔

**ستمن** :- (س+ت+م+ن)(اس۔مذ) يو تريخ بوټے چې د اوښانو خوراک دے۔

**ستمن** :- (س+ت+م+ن)(ص۔مذ۔ج ستمندان۔مو:ستمنه۔جستـه منے) شته من۔شته مند۔مالدار۔دولت مند۔

**سَتمن** :- (س+ت+م+ن)(ص۔مذ۔ج۔ان۔او ستمنه)(۱) ست كوونكے۔بلنه سركونكے۔ميلمه دوست۔(۲) عزتمند۔د ناموس خاوند۔

**ستمهار**:- (س+ت+م+ها+ر)(ص۔مذ)د ساه رابنكلو اواز۔

**ستمي** :- (س+ت+مي)(اس۔مو) زانګل۔ځانګل۔(ظفر)

**ستمے** :- (س+ت+مے)(اس۔مذ۔ج:ستمي)(وـــ ستم)

**ـــ**:۔ (س+ت+مے)(ق۔مذ)د ساه اواز۔

**ستمے** :- كول:ساه راكښل۔

**ستن** :- (س+ت+ن) (اس۔مو۔ج :ستنې)(۱) هغه وړه شان الـه چې جامې وغېره پرې ګنډلے شي۔(ف۔سوځن) ار:سوے) (۲) د كوټې هغه لرګے چې د كوټې تير پرې كښېښودے شي۔سترن۔(۳) د كوټې د ستنې شان هر هغه ولاړ شے چې د پاله پرې څۀ څيز تېر شوے وي (ار:كهمبا) خواه د لرګي وي يا د كوم دهات۔لكه د تار ستن د ټېلفون ستن وغېره (۴) پـه بـدن كښـې د دارو داخلولـو الـه د انجكشـن الـه۔چې سـتن غونـدې پكښې لګېدلے وي۔ (۵) د ځينو ونو پاڼې چې لكه د ستنو په شان اوږدې وي او څوكې لري۔ (۶) (ق) د پتنګانو يو قسم۔په كابل كښې ورتـه بمبيركي

وائي ـ

ـــ **پیل:** په ستنه کنبې تار اچول ـ

ـــ **د تار ورکول:** نامزده کول ـ ښځه چاله په نکاح ورکول ـ

ـــ **وهل:** انجکشن لګول ـ پیچکاري کول ـ (۱) دومره نرے او وړوکے څیز چې د ستنې د سوم نه وتے شي ـ (د غټ څیز د ستنې د سوم نه وتل چې ناممکن کار دے ـ ځکه او ناشونے کار ـ

ـــ **د ستنې سُم:** د ستنې سپم ـ د ستن سورے ـ

بې داستا له زیبا مخه ، وبل مخ ته
منتظــر د یوې ستنې تر سُم نۀ یم (رحمان)

**ستناؤ** :- (س+ت+نا+ؤ)(ق ـ اس ـ مذ) ایساروونکے ـ منع کوونکے ـ

**ستناوه** :- (س+ت+نا+و)(ق ـ اس) د مشرئ او د شرف حق ـ لکه :پر تامې ستناؤ باندې ده ـ یعني په تا د مشرئ او شرافت حق لرم ـ (پ قاموس)

**ستنبوتې** :-(س+ت+ن+بو+تې)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ تې) د یو بوټي نوم ـ چې لوے لوے اغزي (ازغي) لري ـ

**ستنځاے** :- (س+ت+ن+(د)ځا+ے) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د ستنېدو ځاے ـ توقیف خانه ـ د پاتې کېدو ځاے ـ

**ستنځے** :- (س+ت+ن(د)ځ+ے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ځي)(۱) د پاتې کېدو ځاے ـ توقیف خانه ـ (۲) مجلس (ق)

**ستندرډ** :- (س+ت+ن+د+ر+ډ) د انګریزي نه مفغن شوے ـ سټېنډرډ ـ معیار ـ

**ستڼ** :- (س+ت+ن+ړ)(هند ـ اس مذ) پرتوګ (اصلاً ـ سُتهن دے) عام نۀ استعمالېږي په متل کنبې راغلے دے ـ

یه خوارې یا بو ، ستڼه کوبنے په پښو ـ (متل)

**ستن زئ** :- (س+ت+ن+ز+ئ)(اس ـ مع) د موربزو یو څانګه ده ـ اپسوټ دي ـ

**ستن ستنکے** :- (س+ت+ن+کے)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ کي) د صدبرګ ګل ـ ګل صدګ ـ سلپاښې ـ

**ستنګ** :- (س+ت+ن+ګ)(ق)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه ستن چې سورے نۀ لري

**ستنکے** :- (س+ت+ن+کے) سلپاښې ـ د صد برګ ګل ـ بیر کوکو ـ ستن ستنکے ـ

**ستنول** :- (س+ت+ن+و+ل) (مص)(۱) واپس کول ـ بېرته ګرځول ـ بېرته لېږل ـ (عموماً را+در+ورسره استعمالېږي)(۲) د وعدې وغیره نۀ ګرځول ـ منکرول ـ (ق)(۳) پښېمانه کول ـ نادم کول ـ (۴) معطل کول ـ (ق)(۵) منع کول ـ ممانعت کول ـ (ق)

**ستنولے** :- (س+ت+ن+و+لے)(اس صف ـ ج ـ لي) واپس کړے ـ بېرته لېږلے ، راېږلے ـ

**ستنونګ** :-(س+ت+ن+و+ن+ګ)(و ـــ ستنونه)

**ستنونه** :- (س+ت+ن+و+ن)(حمص)(۱) واپس کونه ـ بېرته لېږنه ـ بېرته رالېږنه ـ (۲) واپس کېدنه ـ بېرته ګرځېدنه ـ (۳) پښېمانه کونه ـ (ق)

**ستوونکے** :-(س+ت+ن+و+ن+کے)(فاع ـ مذ ـ ستنوونکي ـ مو ـ ستوونکې) منع کوؤنکے ـ واپس کوؤنکے ـ

**ستنونے** :- (س+ ت + ن + وُ+ نے)(اس فا ـ مذ ـ ج ـ ني) ستنونکے ـ منع کوؤنکے ـ مانع ـ

**ستنه** :- (س+ت+ن)(اس ـ مو) (و ــــ ستن)

**ستنېدل** :-(س+ت+نې+د+ل)(مص)(در ـ ور+راسره استعمالېږي) واپس کېدل ـ بېرته تلل یا راتلل ـ (دا ضد ادو لغت دے) پښېمانه کېدل ـ (ق)

**ستنېدنه** :-(س+ت+نې+د+ن)(حمص) واپس کېدنه ـ بېرته تلنه ـ

**ستنېدونکے** :- (س+ت+نې+دو+ن+کے) واپس کېدنکے ـ بېرته تلونکے ـ بېرته راتلونکے ـ

**ستو** :- (س+تو)(ق ـ اس ـ مذ) ډېر نرے سورے ـ

ـــ :-(س+تو)(ق ـ اس ـ مذ) یو قسم خړ رنګې وابنۀ ـ چې پئ لري ـ

**سَتُو** :- (س+تُ+تو)(اس ـ مذ ـ ج:ستون) ورتې کړې د جوارو دانې (نینې) چې اوړۀ کړے شي نو د ستو بللے شي په پښتو کنبې عموماً د جمې (ستون) په خور استعمالېږي ـ یا به ستوان خوري یا به شپېلي وهې ـ (متل)

**ستوان** :- (س+ت+وا+ن)(اس ـ مذ) د ستو جمع صیغه ـ

ـــ **خوړل او شپېلي وهل دواړه یو ځاے نۀ کېږي** :- په دې دوه کارونو کنبې فقط یو کار کېدے شي په داسې موقع وئیلے شي چې په دوه ؤ خبرو یا کارونو کنبې یوه خبره اختیارول او بل پرېښودل ضروري وي ـ دوه هندوانې په یو ترخ کنبې نۀ شي نیولے کېدے ـ

**ستوخ** :- (س+تو+خ)(صف ـ مذ ـ مو ستوخه ـ ج:ستوخې)(۱) ستغ ـ ستخ ـ سخت ـ ناهمواره لوړه ژوره ـ (۲) په غرۀ کنبې نېغه په بره ختلې لار ـ سخته چړائي ـ (۳) تریخ ـ

ـــ **کېدل**:- (۱) استغېدل ـ سختېدل ـ (۲) ترخېدل ـ

**ستودګې** :- (س+تو+د+ګ+ئ)(ق ـ اس مو) د نقش یو قسم ـ چې مربع وي او شپاړس خانې لري ـ چې په کند جوړولے شي ـ

**ستوده** :- (س+تو+د)(ف ـ صف) هغه چې صفت ئې اوشي ـ تعریف شوے د تعریف وړ ـ د صفت لائق ـ

ـــ **اخلاق**:-(ا+خ+لا+ق)(ف تر ـ ص) د قابل تعریف ـ اخلاقو خاوند د ښو اخلاقو څښتن ـ

ـــ **شیم**:-(ش+ي+م)(و ـــ ستوده صفات) ـــ صفات:-(ص+فا+ت)(ف تر ـ ص) هغه سړے چې قابل تعریف صفتونه لري ـ د ډېرو خوبیو څښتن

**ستوډیو** :-(س+تو+ډي+یو)(اس ـ مذ) سټوډیو د انګریزي نه مفغن شوې دے ـ

ـــ **راډیو**:- (را+ډي+یو) د رېډیو سټېشن ـ سټوډیو ـ

**ستور** :- (س+ت+و+ر)(اس ـ مذ)(۱) څاروے ـ حېوان ـ (۲) قچر ـ

**ستُور** :- (س+تو+ر)(ق اس ـ مذ ـ ج:ان) د یوې مرغۍ نوم ـ چې د کونترو هومره وي تور یا خړ رنګ لري ـ دانې خوري او ډېر خوږ اواز کوي ـ

**ستور** :- (س+تو+ر)(سابقه) د "ستورے" مخفف ـ د سابقې طور نورو الفاظو سره راځي (مثالونه ئې وړاندې راځي)

ـــ **پکې/پکئ**:-(پ+ک+ئ)(ق ـ مو) د کب د وزر په شان یا نقش دے چې په دسترخوان جوړولے شي ـ

ـــ **پوهه**:- (پو+هه)(اس ـ مذ ـ ح ـ پوهې) د ستورو د علم پوهان ـ ستاره شناس ـ منجم (اق) ستور ـ پېژاند ـ

ـــ **پوهے**:-(پو+هے)(اس ـ مذ) د ستورو په علم پوهه ـ ستاره شناس منجم ـ

ـــ **پوهې**:- (پو+هي)(اس ـ مو) ستاره شناس ـ د نجوم په علم پوهه ـ

ـــ **پېژاند**:-(پې+جا/ژا+ن+د)(اس ـ مذ) د ستورو د علم ماهر ـ ستورے پوهے ـ ستاره شناس ـ منجم (اق) د ستورو پېژندونکے ـ ترویتي ـ

ـــ **پېژاندتیا**:-(پې+جا/ژا+ن+ت+یا)(حمص) د ستورو علم ـ ستاره شناسي ـ ستور پوهې (اق)

ـــ **پېژندتیا**:- د ستورو پېژندنه ـ ستاره شناسي ـ

**ستورکے** :-(س+تو+ر+کے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ي) یو وړوکے ستورے دے چې په دب اکب یار بنات النعش ستورو کنبې شام دے چې څوک ئې ووینې نو د نظر د تېزۍ ثبوت ئې ګڼلے شي ـ

**ستورې** :- (س+تو+رې)(ق ـ اس ـ مو) غزیز خر پړے ـ یو څکې ـ پریړه ـ خرمیاه ـ

**ستورے** :- (س+ تو+رے)(اس ـ مز ـ ج :ستورې) (۱) ستاره (۲) قسمت ـ

نصیب ـ مقدر ـ

ـــ **پربوتل**:ـ (۱) د ستوره ډوبېدل ـ یعني په افق کښې غیبېدل ـ (۲) د قسمت ستورے پربوتل ـ قسمت خرابېدل ـ نصیب خوارېدل ـ بدبختي راتلل ـ

ـــ **په گردش کښې دے**:ـ قسمت ئې خراب دے ـ حالات ئې خراب شوي دي ـ بدبختي ئې راغلې ده ـ

ـــ **زلېدل یا ځلېدل**:ـ ستورے روښانه "بود" قسمت او بخت ښهٔ "بودل" ـ

ـــ **ئې لوړوو**:ـ قسمت ئې تېز ؤ ـ خوش قسمته ؤ ـ بختور ؤ ـ

ـــ **زمکې ته راښکته کول** :ـ ناممکنه کار کول

ـــ **بحري**:ـ (ب+ح+ري) سمندري ستورے ـ هغه ستورے چې په سمندر کښې جهازونه په طرفونه معلومېږي ـ

ـــ **په زمکه سیورے او په اسمان کښې ستورے نهٔ لرل** (ق):ـ کنایه:داسې سړے چې ډېر خوار او مفلس وي ـ چې هېڅ نهٔ لري ـ

ـــ **د تلے**:ـ (د+ت+لے) د میزان ستورے ـ د ستورو هغه جومپک چې په اسمان کښې ترې د تلې په شان شکل جوړېږي ـ

**ستورو ـــ د گردش**:ـ (گ+ر+د+ش)د ستور گرځېدنه ـ د پخواني (غلطې) عقېدې له رویه د قسمت تعلق په ستورو گرځېدو سره ؤ ـ ځکه د قسمت پېر ـ بد قسمتي ـ بد نصیبي ـ

**ستورے ـــ د قطب**:ـ (د+ق+ط+ب)مشهور ستورے چې خپل ځاے نه بدلوي او همیشه قطب طرفته وي ـ (پخوا به په سفر کښې ددې ستوري په مدد سره د قطب (شمال)لورې معلومولے شهٔ ـ

ـــ **لکۍ ور**:ـ (اس ـ مذ ـ ج ـ ستوري)هغه ستورے چې یو طرفته ئې رڼا لکۍ شان ښکاري ـ دُم دار ستورے ـ

ـــ **ستوري خېل**:ـ (س+تو+ري+خېل)(اس مع) علي زئ ـ د اورکزیو قبیله ده دا قبیله په دوه برخو کښې وېشلې شوې ده بره وال او تیره وال دیره والو ښاخونه دادي :افضل خېل اوبې خېل ـ او تیره والو ښاخونه په دې ډول دي ـ مېدان ځمکني ـ اندخېل ـ تازي خېل ـ انجني ـ لکونړے ـ

**ستوغ** :ـ (س+تو+غ)(ص ـ مذ)(وـــ ستخ)

**ستوغه** :ـ (س+تو+غ)(ص ـ مو ـ ج :ستوغې) د ستوغ تانیث ـ (وـــ ستغ)

ـــ **ستوغې خبرې کول**:ـ ستغې خبرې کول ـ سختې او نا گوارې خبرې کول ـ

**ستوکل** :ـ (س+تو+ک+ل)(ق ـ ص ـ مذ ـ مو :ستوگانه)(۱) شرارتي ـ بدنیته ـ (۲) سست پست ـ کاهل ـ

**ستوگه** :ـ (س + تو +گ )(اس ـ مو ـ ج:ستوگې)استوگنه ـ رهائش ـ قیام ـ سکونت ـ

ـــ **نیول**:ـ اوسېدل ـ رهائش اختیارول ـ پاتې کېدل ـ قیام کول ـ استوگنه نیول ـ

**ستومانتیا** :ـ (س+تو+ما+ن+ت+یا)(حمص)(۱) ستوماني ـ ستړیا ـ ستړے والے (۲) پښېماني ـ

**ستومانول** :ـ (س+تو+ما+ن+و+ل) (مص)(۱) پښېمانه کول ـ نادم کول ـ (۲) ستړے کول ـ ستومانه کول ـ

**ستومانونه** :ـ (س+تو+ما+ن+و+ن)(حمص)(۱) ستومانه کونه ـ ستړے کونه (۲) پښېمانه کونه ـ نادم کونه ـ

**ستومانوونکے** :ـ (س+تو+ما+ن+ؤ+ن+کے)(فاع ـ مذ ـ ج :ستومانوونکي ـ مو ستومانوونکې)(۱) پښېمانه کوونکے ـ نادم کوونکے ـ (۲) ستړے کوونکے

**ستومانه** :ـ (س+تو+ما+ن)(صف)(۱) پښېمانه ـ نادم ـ (۲) ستړے ـ مانده عموماً د الفاظ په دې معنٰی کښې ستړے سره یا ځاے راځي ـ

**ستوماني** :ـ (س+تو+ما+ني)(اس ـ مو ـ ج ـ نې)(۱) ستړے والے ـ ستړیا ـ ماندگي ـ (۲) پښېماني ـ ندامت ـ

ـــ **اچول**:ـ (۱) ستړیا اچول ـ د ستړي والي اثر په چا پرېباسل ـ (۲) ستړے والے لرې کول ـ ځان دمه کول ـ

ـــ **ایستل/وباسل/یستل**:ـ (۱) ستړے والے لرې کول ـ ستړیا ایستل ارام کول ـ (۲) (په چا) ستوماني اچول د ستومانۍ اثر په چا پرېباسل ـ ستړیا اچول ـ

ـــ **دماغي**:ـ(د+ما+غي)د دماغي کار په وجه ستړیا ـ

**ستومانېدل** :ـ (س+تو+ما+نې+د+ل)(مص)(۱) ستومانه کېدل ـ پښېمانه کېدل ـ نادم کېدل ـ (۲) ستړے کېدل ـ

**ستومانېدنه** :ـ(س+تو+ما+نې+د+ن)(حمص)ستړے کېدنه ـ مانده کېدنه ـ ستومانېدهٔ ـ

**ستومانېدونکے** :ـ (س+تو+ما+نې+دُ+ن+کے)(فاع ـ مذ ـ ج :ستومانېدونکي ـ مو ستومانېدونکې)مانده کېدونکے ـ ستړے کېدونکے ـ

**ستومانېدهٔ**:ـ (س+تو+ما+نې+د)(حمص)(وـــ ستومانېدنه)

**ستومې** :ـ (س+تو+مې)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج :ستومې) د ستنې سوم ـ د ستنې هغه سورے چې تار پکښې اچولے شي ـ سپم ـ

**ستون** :ـ (س+تو+ن)(لاحقه)لاحقه ده ـ نورو الفاظو نه وروستو راځي او د ځاے معنٰی ورکوي ـ لکه مړستون ـ

**ستُون**:ـ (س+تو+ن)(اس ـ مذ ـ مو :ستنه ، ج ـ ستنې)(۱) واپس شوي ـ بېرته گرځېدل ـ (۲) اوربدل ـ د څهٔ خبرې نهٔ گرځېدل ـ (۳) ورگرځېدل ـ ل مخه کول ـ

تـــور بــــانهٔ ئـــې سپاه دي د شاهانو
چې ستانه شي په کوم لور جنگ د برې کا (حافظ)

ـــ **سفینه**:ـ (س+فې+ن)(ف تر ـ مذ)د بېړے یا د جهاز هغه لوې ولاړ لرگے چې بادبان ورپورې تړلے شي ـ

ـــ **فقار**:ـ(ف+قا+ر)(عف تر ـ اس ـ مذ) د ملا تیر ـ

**ستونځ** :ـ (س+تو+ن+(د)ز)(ق ـ صف ـ مذ ـ لوې ستونځه)لوړ ـ اوچت ـ

**ستونځه** :ـ (س+تو+ن+(د)ز)(اس ـ مو ج ـ ې)تنگسه ـ تنگي ـ سختي ـ ستونزه ـ

ـــ **کاکړ**:ـ (س+تو+ن+(د)ز)(پ ـ صف) مانع ـ ښنگوله ـ (خدران) اشکال ـ

**ستونیچه** :ـ(س+تو+نې+چ)(ق ـ اس ـ مو ـ ج:ستونیچې)ډوډۍ پخه ولو لستونړے شان د نانوائي لندا لستونړے ـ

**ستونزه** :ـ(س+تو+ن+ز)(اس ـ مو ج:ستونزے) مشقت ـ محنت ـ خواري ـ تکلیف ـ زحمت ـ

**ستونکے** :ـ (س+تو+ن+کے)(فاع ـ مذ ـ ج:ستونکي ـ مو :ستونکې) هواروونکے

**ستونؤل** :ـ (س+تو+ن+و+ل)(مص مت)(۱) منع کول ـ (۲) واپس کول ـ بېره راگرځول (۳) پښېمانه کول ـ

**ستونؤنه** :ـ(س+تو+ن+ؤ+ن)(حمص) (۱) واپس کونه ـ بېرته کونه ـ (۲) منع کونه ـ راگرځونه ـ (۳) پښېمانه کونه ـ

**ستونوونکے** :ـ (س+تو+ن+ؤ+ن+کے)(فاع ـ مذ ـ ج:ستونوونکي ـ مو ستونوونکې) (۱) واپس کوونکے ـ راگرځوونکے ـ (۲) منع کوونکے ـ (۳) پښېمانه کوونکے ـ

**ستونه** :ـ (س+تو+ن)(ق ـ مو)واپسي ـ

**ستونے** :ـ (س+تو+نے)(اس ـ مذ ـ ج:ستوني)حلق ـ د خولې او د مرۍ تر مېنځه ـ حصه غاړه ـ

ـــ **بندېدل**:ـ مرۍ بندېدل ـ مرۍ وچېدل ـ لکه :خپگانه زما ستونے بند شي

ـــ **ډک ډک کېدل**:ـ ستونے له ډېره غمه بندېدل ـ له ډېر غمه ژړا ورتللو سره

غاړه بندېدل.

ـــ **په ستوني کښې درېدل**:. په مرۍ کښې نښتل. خوراک په مرۍ کښې ایسارېدل. په ستوني کښې نښتل:. خوراک په مرۍ کښې نښتل. بندېدل.

ـــ **د ډېر خفګانه بندېدل**:. د ډېر زیات خفګان علامت دے.

**ستوني** :- (س+تو+ني) دستونے مجروري شکل. لکه د ستوني له ستوني تر ستوني.

ـــ **ستاک**:. (س+تا+ک) (وـــ ستوني ستغ)

ـــ **ستغ**:. (وـــ ستوني ستغ

ـــ **ستغ**:. (س+ت+غ)د ثملاستو یا پرېوتو داسې حالت چې ملا ورسته په زمکه وغېره لګېدلې وي. او لاسونه پښې پرېشانه خورے وي شاؤلې واؤلې. (ستوني ستغ)

ـــ **ستغ اچول**:. څوک په زمکه یا په کټ وغېره داسې راچول چې درسته ملا ئې په زمکه لګېدلے وي.

ـــ **ستغ ودۀ کېدل**:. د ستوني ستغ حالت کښې اودۀ کېدل. (د تشریح د پاره وګورئ ستوني ستغ)

ـــ **ستغ پرېوتل**:. په زمکه یا په کټ وغېره داسې ثملا ستل چې درسته ملا په کټ یا زمکه لګېدلې وي. او لاسونه پښې پرېشانۍ سره خوارۀ وي.

ـــ **کښې لغته کښېښودل (چاته)**:. (۱) د چا په ستوني باندې پښه کښېښودل. مجازاً د چا د امدن ذریعه بندول. د چا په رزق کښې بندېز راوستل. (۲) د چا په روان کار کښې اړیکه پېدا کول. د چا په کار کښې خنډ اچول. (ق)

ـــ **تېرول**:. د خوراک څۀ څیز یا دارو د حلق نه وړاندې تېرول. اوګېډې ته اچول (عموماً د داسې څیز. لکه تراخۀ دارو په حقله وئیلے شي)

ـــ **تر نه تېردل**:. د خوراک څۀ څیز د حلق نه نۀ وړاندې کېدل. (عموماً د څۀ ناګواره یا تریخ څیز د پاره وئیلے شي. یا چې د ډېر غم په وجه مرۍ وچه یا بنده شي. یا وچ کلک څیز لکه بې اینګولي ډوډۍ.

ـــ **ستونېدل**:.(س+تو+نې+د+ل)(مص)(۱) ستون کېدل. ستنېدل. واپس کېدل. بېرته ګرځېدل.

**ستونېدنګ**:- (س+تو+نې+د+ن+ګ) (وـــ ستونېدنه)

**ستونېدنه**:- (س+تو+نې+د+ن)(حمص) (۱) د ستېدو عمل. واپس کېدنه. بېرته ګرځېدنه ستنېدنه. (۲) د خپلې وعدې یا خبرې نه ګرځېدنه.

**ستونېدونکے** :- (س+تو+نې+دُ+ن+کے)(فاع. مذ. ج:ستونېدونکي. مو ستونېدونکې)(۱) واپس کېدونکے. بېرته ګرځېدونکے. (۲) د خپلې خبرې یا وعدې نه ګرځېدونکے. بې وعدې کېدونکے.

**ستونېدۀ** :-(س+تو+نې+د)(حمص) (وـــ ستونېدنه)

**ستوؤنکے** :-( س+تو+ؤ+ن+کے)(ق اس. فاع. مذ. ج. کي) (سطح وغېره) ښکته. کښېښونکے. همواروونکے.

**ستوه** :- (س+ت+و+(ه)(ق اس. مو. ج:ستوې)د پېښ قوزه. (د پېش قبض)

**ستوهه** :- (س+تو+هه)(اس. مو. ج:ستوهے)(۱) ستړیا. ستړے والے. (۲) غم. رنج. فکر.

په خوشۍ کښې زاړۀ لکه زلمي شي
ځوان زلمي تر زاړۀ لاندې کاندې ستوهه (خوشحال)

(۳) محنت. مشقت.

چې فلک وچاته عېش وعشرت ورکا
همره ډېر ورباندې کېږدي څو ستوهه (خوشحال)

**ستوهېدل** :- (س+تو+هې+د+ل)(مص)(۱) خفګان کول. (۲) ستړے کېدل. (۳) په تکلیف کښې وخت تېرول.

هوښیار ته ګول شه که ډېر پوهېږې
څو خاموشي کړې نه به ستوهېږې (خوشحال)

**ستوے** :- (س+ت+و+ے)(لاحقه) دا لفظ ،یو،سره راځي یعني یو ستورے یو تاریز

**ستوے** :- (س+ت+و+ے)(اس. مذ)د سترګو دیو مرض نوم دے.

**ستوي** :- (س+ت+وي)(ق اس. مذ)(۱) د مروارېدو اوبۀ (۲) د اوسپنې اوبۀ (وزیري)

**ستویلن** :- (س+ت+و+ے+ل+ن)(اس. صف)جوهردار. ابدار (فولاد وغېره)

**ستۀ** :- (س+ت)(اس. مو)هستي. وجود. موجودګي.

**ستہ** :- (س+ت)(سابقه)د شته بدل شکل دے. د سابقې په طور هم استعمالېږي. لکه سته مند. یعني. شته مند. مالدار. دولتمند یاسته دے یعني موجود دے.

**سئته** :- (س+ت)(وـــ څئته)

**سته** :- (س+ت) (ق)(اس. مو. ج. ې)سطح. هواره. مخه (د سطح بدل شکل دے)

ـــ **زمکه**:. (اس. مو. ج. ے)هواره زمکه (ځمکه. مزکه)

**سته** :- (س+ت)مرسته. حمایت. پره کول. طرفداري. (ظفر)

ـــ **په سیله**:. په حمایت. په ملګرتیا.

**ستهان** :- (س+ت+ها+ن)(ق. لاحقه)دوستان ، هندۍ شکل دے. په هندۍ مرکباتو کښې داستان. په ځاے راځي. ملک هېواد.

**سته من** :- (م+ن)(ص. مذ. مو :سته منه. ج. سته منے) دولتمند. مالداره

**سته منتوب** :- (تو+ب)(اس. مذ)سته منتیا. شته والے. دوتلمندي.

**سته منتیا** :- (ت+یا)(اس. مو) (وـــ سته منتوب)

**سته منوالے** :- (وا+لے)(اس. مذ)(وـــ سته منتوب)

**ستۍ** :- (س+ت+ۍ)(هه. مو)د هندوانو یو دستور ؤ. چې د ښځې خاوند به مړ شو نو د هغه ښځې به ئې ورپسې ژوندۍ وسوځوله (دا رسم وروستو بند کړے شو)هغه ښځه چې خاوند پسې وسوځي (هندي لفظ "ستۍ" دے)

دا ستي چې په اور سوځي مطلب ئې دا وي
چې په اور کښې سوے ښه یم نه بې پته (رحمان)

ـــ **کېدل**:. د خاوند د مړکېدو نه پس په هغه پسې اور کښې سوځېدل (د هندوانو رسم)

**ستي** :- (س+ت+ي)(ق. اس. مو)یوه مېوه. شاهتره.

**ستي** :- (س+تي)(ده. حف)(۱) سوځېدلے. شوے (د تشریخ د پاره د کوري ستي)(۲) قربانېدونکے. ځارېدونکے. ډېر زیات مئین چې په معشوقه ځان قربانولو ته تیار وي یا دا چې د عشق په اور سوے لوغړن وي.

ـــ **کول**:. (۱) بېخي سوځول. سورے سورے کول. (۲) مجازاً مئینول. سخت عاشق کول. (۳) ډېر زیات تنګول (ظفر)

ـــ **کېدل**:. (۱) بېخي سوځېدل. سوے سکور کېدل (۲) مجازاً ډېر سخت مئینېدل (۳) د چا د لاسه ډېر زیات تنګېدل. (۴) له ډېره قهر زړۀ خوړل. (ظفر)

**ستیتوسکوپ** :- (س+تي+تو+س+کو+پ)(وـــ ستهے تهسکوپ)

**ستېدل** :- (س+تې+د+ل)(ق مص)قهر سړېدل. رضا کېدل. صلح ته تیارېدل.

**ستېز** :- (س+تې+ز)(ق. اس. مذ)جنګ. جګړه. فساد.

ـــ **ګر**:.(ګ+ر)(ق تر. ص. مو. ګره) جنګیالے. جنګ جګړه کوؤنکے. ضدي.

**ستېزه** :- (س+تې+ز) (اس ـ مو ـ ج ـ ستېزې) (۱) د غر د پاسه هوار مېدان ـ (۲) لوړه زمکه ـ سطح مرتفع ـ

**ستيزه** :- (س+تي+ز) (و ـــ ستيز)

ـــ **جو** :- (جو) (ف تر ص) هغه کس چې جنګ په نېغه اخلي ـ جنګيالے ـ د جنګ جګړې د پاره بانې لټوونکے ـ

ـــ **خو** :- (خُو) (ف تر ـ ص) هغه سړے چې جنګ جګړه ئې په ختـه کښې اخښلے شوے وي ـ جګړ مار ـ جنګيالے ـ

ـــ **کار يا ګار** :- (کا/ګا+ر) (ف ـ تر ـ ص) جنګيالے ـ جګړ مار ـ

ـــ **کاري يار ګاري** :- (کا/ګا+ري) (ف تر ـ اس مو ـ ج ـ ئ) جنګيـالي تـوب ـ جګړه ماري ـ ضد بازي ـ

ـــ **کول** :- جنګ جګړه کول ـ ضد کول ـ

هر کمتر چې د مهتر سره ستيزه کا
د عمل سزا بـــه مومي په انجام (خوشحال)

**ستيل** :- (س+تي+ل) د انګريزي نه مفغن شوے ـ ستيل ـ فولاد ـ

**ستَيل** :- (س+ت+ي+ل) (ق ـ مص) هوادارول ـ لوړې ژورې لرې کول ـ برابرول

**سټ** :- (س+ټ) (و ـــ ښټ)

ـــ **ماتېدل** :- ښټ ماتېدل ـ څۀ کار تـه ډېره نۀ لګېدل ـ د څۀ کار پـه کولو کښې سستي يا بې همتي ښودل ـ

ـــ **ورکول** :- ښټ ورکول ـ په جغ (ژغ) کښې سر ورکول ـ

**سټ** :- (س+ټ) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) سندان (دلوهارانو)

**سَټ** :- (س+ټ) (اس مذ) ګزار ـ ضرب ـ

ـــ **ورکول** :- ګزار ورکول ـ ضرب لګول ـ په سټک وغېره په زور وهل ـ

ـــ :- (س+ټ) (هه ـ مذ) جـوړ ـ تعلـق ـ سـازش ـ دا لـفـظ عموماً "ټ" سـره يـو ځـاے راځي ـ لکـهـ کيـټ (لګـول) (اصلاً دا د هنـدي د سـانټ بـدل شـکل دے) ـ

ـــ :- (س+ټ) (ص) (۱) تباه ـ برباد ـ (۲) سندان (د لوهارانو) (۳) پاځۀ کړې ماش ـ (۴) هغه لرګې چې سندان پکښې ټک وهلے شي ـ (۵) ناځاپه مړ شوے ـ (۶) د قېمې د ټکه ولو لرګې چې د ونې د تنې نه جوړولے شي ـ

ـــ **کېدل** :- (۱) تباه کېدل ـ هلاک کېدل ـ (۲) ناځاپه مړ کېدل ـ

ـــ **وټ** :- تباه ـ او برباد ـ ناځاپه په مرغ ـ

ـــ **سټ وټ** :- شي! ښېره ده تباه شې ـ هلاک او برباد شې ـ ناځاپي مړ شي

ـــ **کول** :- ببخي تباه کول ـ بالکل تباه کول ـ

ـــ **کېدل** :- ببخي تباه کېدل ـ بالکل هلاک کېدل ـ

ـــ **سټ سره کول** :- سره تباه کول ـ هلاک کول ـ

**سِټ** :- (س+ټ) (انګ ـ امر) کښېنه يا کښېنئ ـ عموماً سيټ ډون وائي ـ

ـــ :- (س+ټ) (و ـــ سيټ)

**سټ پټ** :- (ق) (ب+ټ) (اس) ګرونجے (د مخ يا د جامې وغېره) ګونجے غونجے ـ

**سټا/سټه** :- (س+ټ+ټا) (هه مذ) سودا ـ باپار ـ شرط لګونه يو قسم ـ سودا بـازي ـ چې د جوارۍ په شان ده ـ

**سټاپ** :- (س+ټا+پ) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د اودرېدو ځـاے د لارو بسونو پـه لاره کښـې د سـورلو اخسـتو او د کوزولـو د پـاره د لـږ سـاعت د پـاره د اودرېدو ځاے

ـــ **واچ** :- (وا+چ) (انګ ـ تـر ـ اس ـ مـذ ـ ج ـ ونه) هغـه ګـړی چـې د روانولـو او اودرولو د پاره پکښې بټن لګېدلے وي ـ عموماً د لوبو په مقابلو کښې پکاريږي ـ

ـــ **بس** :- (ب+س) (انګ تر ـ مذ ـ ج ـ ونه) په لاره کښې د بسونو د ودرولو يو ځاے

**سټار فش** :- (ف+ش) (انګ تر ـ مذ) يو قسم کب يا ابي ځناور چې د ستوري د پـرو پـه شـان ئـې ګڼې پښـې راوتـې وي او د ستوري پـه شـان شـکل تـرې جوړېږي ـ

**سټار** :- (س+ټا+ر) (انګ ـ اس ـ مذ) ستورے ـ

ـــ :- (س+ټ+ر) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د لوهارانو يو اله (سوهان) ـ

ـــ :- (س+ټ+ر) (اس ـ مذ) اوړے شوے توت ـ

**سټار** :- (س+ټا+ر) (ق ـ مذ) هغه تېل چې د چلغوزي او د نښتر د ريښو نه وښکے شي ـ

**سټارټ** :- (س+ټا+ر+ټ) (انګ ـ اس ـ مذ) شورو ـ شروع ـ اغاز ـ

ـــ **کول** :- (انګ ـ پ تر ـ مص) (۱) د موټر لارۍ د جهازو وغېره مشين روانئول

ـــ **کېدل** :- (انګ ـ پ تر ـ مص) د موټر لارۍ د جهاز مشين روانېدل ـ يعني کار شورو کول ـ

**سټارټر** :- (س+ټا+ر+ټ+ر) (انګ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغـه الـه چې د کارخانې وغېره د بجلۍ موټر روانه وي ـ

**سټاره** :- (س+ټا+ر) (ق ـ مو) دا لفظ "صلح" سره د تاکيد د پاره يو ځاے راځي ـ لکه صلح سټاره ئې ورسره اوکړه (ځيني خلق، سوله سټاره وائي)

**سټاف** :- (س+ټا+ف) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ونه) (۱) ډنډه ـ عصا ـ (۲) د جوجي افسرانو يو عهده ـ چې کمانډر ان ـ چيف (د فوجونو سربراه) لـه مشـورې ورکوي (۳) د يـوې محکمې يا د ادارې غـړے ـ يـو ځـاے کـار کوؤنکي ملګري ـ

ـــ **روم** :- (رو+م) (انګ تر ـ اس مذ ـ ج ـ ونه) په يو اداره کښې هغه کوټه چې پکښې په دغه يو اداره کښې کار کوؤنکي د ارام يا اوزګار وخت تيروي ـ

**سټاک** :- (س+ټا+ک) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) ذخيره ـ

**سټاک ايکسس چينج** :- (ا+ک+س+چي+ن+ج) (انګ ـ اس ـ مذ) د يوې ادارې د کار چې د کمپنۍ يا د کمپنو حصې خرڅوي ـ

**سټاکهالم** :- (س+ټا+ک+ها+ل+م) (اس ـ مع) د سويډن دارالحکومت ـ

**سټال** :- (س+ټا+ل) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) په ببنچ يا تختـه يا پـه دم تاچـه دخرڅ د پاره ځيزونه کښېښودل وړوکے ويړ دوکان ـ

ـــ **لګول** :- عارضي طور سره په يو کولاؤ ځاے کښې د خرڅ د پاره ځيزونه کښېښودل ـ

**سټاله** :- (س+ټا+ل) (ق ـ مو) تخمينه ـ اندازه ـ سټله (ار : تهوک په پښتو کښې هم او دا لفظ استعمالېږي) توک ـ

ـــ **په اخستل** :- سټل اخيستل په يو ځاے اخيستل د ټولو ځيزونو يو ځاے بيعه خلاصول او خيستل ـ په اندازه بيعه کول په تخمينه اخستل ـ

ـــ **په ورکول** :- (ق) په تخمينه ورکول ـ په اندازه او تخسين ورکول ـ

**سټامپ** :- (س+ټا+م+پ) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه سرکاري کاغذ چې سرکاري مهر (ياچاپ) پرې لګېدلے وي ـ او د رسيدونو دستاويزنو وغېره د ليکلو د پاره پکارولے شي ـ ټکټ ـ (د ډاک)

**سټائل** :- (س+ټا+ئ+ل) (انګ ـ اس ـ مذ) اندازه ـ طرز ـ طريقه ـ فيشن ـ اسلوب ـ

**سټډي** :- (س+ټ+ډي) (انګ ـ اس ـ مو ـ ج ـ ګانې) (۱) مطالعه ـ د سبق لوستنه ـ (۲) د مطالعې کوټه ـ

**سټرابيري** :- (س+ټ+را+بي+ري) (انګ ـ اس) يو قسم بېرې په شان مېوه ـ

**سټرائيک** :- (س+ټ+را+ئ+ک) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ونه) هړتال ـ د احتجاج په طور ـ کار نۀ کول ـ

**سټرائک** :- (س+ټ+را+ئ+ک) کول (انګ پ تر ـ مص) د څۀ کار خلاف هړتال

کول ـ د حتجاج په طور کار نهٔ کول یا دوکانونه نهٔ پرانستل ـ

**ستړکټ**:-(س+ټ+ر+ک+ټ)(انګ ـ صف) سخت ـ د قاعدې د ستور سخته پابندي غوښتونکے ـ

**ستړکچر**:-(س+ټ+ک+چ+ر)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) ساخت ـ جوړښت ـ (۲) بناء (د عمارت)

**ستړلنګ**:-(س+ټ+ر+ل+ن+ګ)(انګ ـ صف) (۱) خالص ـ صفا ـ د پوره وزن (۲) قیمتي ـ بهترین ـ (۳) یوه یورپي سکه پونډ ـ

**ستړیټ**:- (س+ټ+ري+ټ)(انګ اس ـ مذ ج ـ ونه) بازار ـ کوڅه ـ چې سړک پکښې تېر شوے وي ـ

**سټ سمت**:-(س+ټ+س+م+ټ)(اس ـ مذ ـ مو ـ سته متهه ج ـ ستې متې) بېکاره او سسته سړے ـ ناراسته سړے ـ

**سټ سودا**:-(س+ټ+سو+دا)(اس ـ مو) په اندازه او تخمین سودا ـ

**ـــ کول**:ـ په تخمین سره بیعه کول ـ

**ستک**:- (س+ټ+ک)(انګ ـ اس ـ مو ـ مذ ج ـ ونه)(۱) لرګے ـ بېنت ـ (۲) د لرګي په شان غونډ څیز ـ چې لړ یا ډېر اوږد والے لري ـ

**ـــ لپ**:ـ(ل+پ)(انګ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه وړوکے شان غونډ څیز چې زنانه پرې شونډې سرې کوي

**ستک**:- (س+ټ+ک)(انګ ـ اس ـ مذ (۱) لاس لرګې ـ کوټټني ـ (۲) هاکي ـ

**ستک**:- (س+ټ+ک)(اس ـ مذ ـ ج ـ ستکونه /ستکان) لوهارانو تر کابانو هغه اله چې مېخونه وغېره پرې ټک وهي ـ (اردو ـ تهوړا) سوټک ـ د زرګر ټکاټک د لوهاریو ستک (متل)

ـــ:ـ(س+ټ+ک)(وــــ څټک)

**ستکورے**:-(س+ټ+کو+رے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ي)(۱) ډوډۍ سوځېدلے ټکړه چې په تنور کښې پرېوزي یا پاتې شي ـ (۲) بېخ و بنیاد ـ

**ـــ کول**:ـ (۱) تباه و برباد کول ـ (۲) دړه وغېره ښهٔ سوځول ـ (۳) ډوډۍ په تنور کښې سوځول ـ

**ـــ کېدل**:ـ (۱) تباه و برباد کېدل ـ خرابېدل (۲) د لرګي یا د دړې نیم سوځېدل ـ (۳) د ډوډۍ سوځېدلې برخه تنور کښې پاتې کېدل ـ

ـــ:ـ(س+ټ+کو+رے)(وــــ څټکورے)

**ستکے**:- (س+ټ+کے)(اس ـ مذ ـ ج:ستکي)(۱) وړوکے څټک ـ (۲) ښښانه د وړوکي مناري په شان لوټه وغېره ـ

ـــ:ـ(س+ټ+کے)(اس ـ مذ ـ ج :ستکي) هغه اله چې جندره (ژرنده) پرې تېره کوي ـ (دا په اصل کښې ستکے او خپړۍ دوه څیزونه وي)

**ستل**:- (س+ټ+ل (مص)(وـــ څټل)

ـــ:ـ(س+ټ+ل) (اس ـ مذ ـ مو ـ ستله) په هیر ـ په یو ځاے ـ (سودا وغېره)

**ستله**:- (س+ټ+ل(اس مو ـ ج ـ ستلې) د ستل تانیث ـ په یو ځاے په هیر په تخمینه

**ـــ سودا**:ـ په هیر ـ د ټول مال ـ په جمع په یو ځاے (سودا وغېره) د ډېرو څیزونو په جمع قیمت لګول د ګڼو څیزونو په یو ځاے (په اندازه) بیعه کول ـ

**ستله سودا کول**:- څهٔ څیز د هیره اخیستل ـ د ګڼو څیزونو په جمع قیمت لګول

**ستلے**:- (س+ټ+لے)(صف ـ مذ) بدبخت ـ منحوس ـ نستلے ـ اسکیرلے ـ (ا ـ ق)

ـــ:ـ(س+ټ+لے)(وــــ څټلے)

**ستماتونے**:-(س+ټ+ما+تو+نے)(اس مذ) (وــــ ستمتونے)

**ستمبیخ**:- (س+ټ+م+بي+خ)(ق ـ اس ـ مذ) یو قسم ګیاه ده چې وبخ ئې د کچالو په شان وي ـ

**ستمتونے**:-(س+ټ+م+تو+نے)(ق اس ـ مذ ـ ج ـ ني) د لرګو د ماتولو آله ـ

**سټ مخے**:- (س+ټ+م+خے)(وـــ څټ مخے)

**سټ مخي**:-(س+ټ+م+خي)(وـــ څټ مخي)

**ستو**:- (س+ټو)(انګ ـ اس ـ مو ـ ج ـ ګانې) هغه اوسپنیز نغرے ـ چې پکښې د خوارو تېل بلېږي ـ خو باتۍ نهٔ لري بلکې د بادو د دباؤ په زور تېل پکښې د یو نرې سورې نه راوځي او تیزۍ سره بلېږي ـ

**ستوډنټ**:-(س+ټو+ډ+ن+ټ)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان) طالب علم ـ متعلم ـ شاګرد

**ستوډیو**:- (س+ټو+ډ+یو)(انګ ـ اس ـ مو ـ ج ـ ګانې)(۱) هغه ځاے چې مصور یا فوټوګرافر پکښې کار کوي ـ (۲) هغه ځاے چېرته چې فلمونه جوړېږي ـ

**ستوډیوفلم**:-(ف+ل+م)(انګ تر ـ اس ـ مو ـ ج ـ ګانې) هغه ځاے چېرته چې د سنیما فلمونه جوړېږي-

**ستور**:- (س+ټو+ر)(انګ ـ اس ـ مو ـ ج ـ ونه)(۱) د ذخېرې ځاے ـ د څیزونو د کښېښودو ځاے ـ(۲) د کور د عمومي څیزونو د کښېښودلو کوټه ـ(۳) د څینو خاص څیزونو لوے دوکان لکه :ډیپارټمنټل سټور ـ

**ستول**:- (س+ټو+ل)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د څلور پښو د لرګي نه ساز هغه څیز چې سړے پرې کښېني ـ یا څیزونه پرې کېږدي ـ برنۍ تخته ئې عموماً بیضوي وي ـ

ـــ:ـ(س+ټ+و+ل)(مص) تباه کول ـ بربادول ـ هلاکول ـ بېخ بنیادا یستل ـ وژل ـ

**ستون**:- (س+ټو+ن)(انګ ـ اس ـ مذ) کاڼے ـ تیږه ـ

**ستونک**:- (س+ټو+ن+ک)(وـــ ستونه)

**ستونه**:- (س+ټو+ن)(حمص) تباه کونه ـ بربادونه ـ بېخ کني ـ

**ستوؤنکے**:-(س+ټ+وؤ+ن+کے)(اس نا ـ ج ـ کي) برنادوونکے ـ تباه کوونکے ـ بېخ وستونکے ـ

**سته**:-(س+ټ)(اس ـ مو ـ ج :ستې)(۱) بنیاد ـ بېخ ـ (۲) ستن ـ ستون ـ (۳) ګرګه ـ د ونې د تنې غټ لرګې ـ (۴) قاعده ـ (۵) لوې طاقتور سړے ـ (۶) د ونې وبېخ چې په زمکه کښې پاتې شي ـ سنډره ـ ولۍ ـ ختې ـ مونډۍ ـ

**ـــ ختل/وتل**:ـ تباه کېدل ـ بربادېدل ـ بېخ بنیاد وتل ـ

**ـــ په پوهېدل**:ـ د څهٔ څیز جرې ـ ماهیت ته رسېدل ـ

**ـــ درنه لویه**:ـ (۱) لویه یا درنه ګرګه ـ (۲) مجازاً ـ لوې زورور او پُر وقار سړے

**سته بازي**:-(س+ټ+با+زي)(هـ ـ اس ـ مو ـ ج ـ ئ) په پېداوار باندې شرط لګول یو قسم سودا بازي ـ چې د جوارۍ په شان ده ـ

**ستې**:-(س+ټ+ئ)(اس ـ مو)(وـــ ختې)

**ستي**:- س+ټي)(انګ ـ اس ـ مو) ښار ـ لوي ښار ـ

**ستیپ**:- (س+ټ+پ)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) قدم ـ

**ـــ اخستل**:ـ(انګ پ تر ـ مص) قدم اخیستل ـ اقدام کول ـ پېل کول

**ستېپل**:- (س+ټي+پ+ل)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د مشین په ذریعه ـ یا د کاغذونو د تړلو د پاره د اوسپنې د تار نه جوړه شوې خاص ټکړه ـ

**ستېپلر**:- (س+ټي+پ+ل+ر)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه اله چې د اوسپنې تار (ستېپل) په ذریعه کاغذونه ګنډي ـ

**ستي پټي**:-(س+ټي+پ+ټي)(ق ـ مص) خواه نا خواه ـ حقه نا حقه ـ

**ـــ کار کول**:ـ (ق) خواه نا خواه کار کول ـ حق وي او که نا حق خرکار کول ـ

**ستے تهسکوپ**:- (س+ټے+ته+س+کو+پ)(انګ ـ اس ـ مذ) هغه ډاکټري اله چې د زړهٔ حرکت پرې معلومولے شي (عوام ورته "دوربین" وائي-

**ستېپ** :- (س+تې+پ)(انګ ـ اس ـ مذ)ریاست ـ ولایت ـ حکومت

**ستېپس**:- (س+تې+پ+س)(انګ ـ اس ـ مذ)درجه ـ رتبه ـ

**ستېټیسټکس** :- (س+تې+ټ+س+ټ+ک+س)(انګ ـ اس جم)د ملک د ابادۍ ـ پیشو وغېره ـ حالاتو متعلق ـ معلوماتي اعداد و شمار ـ

**ستېټسمین**:- (س+تې+ټ+س+مې+ن)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ اُن)سیاست دان ـ د حکومت په کار پوهان ـ

**ستېټیوټ**:- (س+تې+ټ+یو+ټ)

**ستېچیوټ**:-(س+ تې + چ + یو+ ټ )( انګ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه ) قانون ـ دستور ـ اساس نظام ـ

**ستېج**:- (س+تې+ج)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) د ټیټر هغه چوتره چې سیزي (منظورونه) وغېره پکښې جوړ شوې وي ـ اوې البکټران (اداکاران) پکښې ډرامې پېش کوي ـ (۲) جلسو او غونډو کښې هغه چوتره چې د جلسې یا غونډې مشران صدر او نور مشران پرې ناست وي او ټولو خلقو ته ښکاري او چېرته چې نه چې تقریرونه کولے شي ـ

**ستې چو**:- (س+تې+چو)(انګ ـ اس ـ مذ) د کاڼي وغېره نه جوړه شوې مجسمه (د چا خاص مشهور سړي) بُت ـ

**ستېدل**- (س+تې+د+ل)(مص)تباه کېدل ـ برباد ېدل ـ (بېخ ـ بنیاد)وتل ـ

**ستېدنه**:-(س+تې+د+ن)(حمص)سټ وټ کېدنه ـ بېخ وتنه ـ بربادي تباهي ـ

**ستېدونکے** :-(س+تې+دو+ن+کې)(اس فا ـ ج ـ کي) تباه کېدونکے ـ ل بربادېدونکے ـ بېخ وتونکے ـ

**ستېده**:- (س+تې+د) (حمص)سټ وټ کېدنه ـ تباهي ـ بربادي ـ

**ستېډیم**:-(س+تې+ډ+ي+م)(انګ ـ اس ـ مذ) د لوبو کولو لوي مېدان چې چار چاپېره ترې د تماشبینو د ناستې د پاره پوړۍ جوړې شوې وي

**ستېډیوم**:- (س+تې+ډ+یو+م)(وـــ ستېډیم)

**ستېري لائز**:- (س+تې+ري+لا+ئ+ز)(انګ ـ مع)د جراثیمو نه پاکول ـ

**ستېریوسکوپ** :- (س+تې+ري+یو+س+کو+پ)(انګ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه اله چې پکښې کېمرې خاص تصویرونه کتے شي ـ

**ستېزن**:- (س/سې+تې+ز+ن)(انګ ـ اس ـ مذ)د ښار وسېدونکے ـ ښارے ـ هغه سړے چې د یو ښار ، د شهرت ، مند یا حقوق لري ـ

**ستېشن**:- (س+تې+ش+ن)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) د اودرېدو ځاے ـ موقف ـ (۲) مقام ـ منزل ـ ځاے ـ لکه سروس ستېشن (عوام ټېشن وائي)

**ـــ د ګاډي**:-(د+ګا+ډي)(انګ پ تر ـ اس ـ مذ)د رېل ګاډي د اودرېدو ځاے او د روانېدو ځاے ـ (عوام د ګاډي ټېشن وائي)

**ـــ ماسټر**:-(ما+س+ټ+ر)(انګ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان)د ګاډي د ستېشن مشر افسر ـ د ستېشن (ټېشن) بابو ـ

**ـــ پولیس**:-(پو+لي+س)(انګ تر ـ مذ)تانه ـ هغه ځاے چېرته چې د پولیس سپاهیان او د هغوي افسران (تانېدار) وغېره اوسي ـ او هر وخت موجود وي ـ

**ـــ د برېښنا**:-(۱) بجلۍ ګر(ګهر) هغه ځاے کوم ځاے کښې چې بجلي جوړېږي ـ (۲) هغه ځاے چېرته چې بجلي په قابو کښې ساتلے او خورولے شي ـ

**ـــ د راډیو**:- هغه ځاے یا اداره چېرته نه چې د رېډیو پروګرامونه خورولے شي

**ستېشنري** :- (س+تې+ش+ن+ري)(انګ ـ اس ـ مو)د دفتر یا د مدرسې کالج د لیکلو سامات لکه کاغذ ـ کاپۍ ـ قلم دوات وغېره ـ

**ستېم**:-(س+تې+م)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)براس ـ بخارات ـ

**ـــ انجن**:- (ا+ن+ج+ن) (انګ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه انجن چې د براس یا بخاراتو په زور چلېږي ـ

**ستېم بوټ** :- (بو+ټ)(انګ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه جهازونه چې د براس په زور چلېږي ـ

**ـــ پریس**:-(پ+ر+س) (انګ ـ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)هغه چاپه خانه چې د براس په زور چلېږي (چاپه خانې اوس په بجلۍ چلېږي ـ د بځلۍ نه وړاندې په براس چلېدونکے ـ کارخانې ډېرې وې)

**ستېمر**:- (س+تې+م+ر)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د اوبو هغه جهاز چې د براس په زور چلېږي ـ

**ستېمولنټ** :-(س+تې+مو+ل+ن+ټ)(انګ ـ صف)هغه دوائي چې د کار قوت ورکوي ـ محرّک ـ

**ستېمنا** :- (س+تې+مې+نا) (انګ ـ اس ـ مو) قوت ـ طاقت ـ

**ستېنډ**:- (س+تې+ن+ډ)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) د څۀ څیز د اودرولو یا کېښنولو ځاے ـ (۲) اډه ـ د ټانګو ـ لارو ـ بسونو د ودرېدو ځاے ـ

**ستېنډاپ** :- (س+تې+ن+ډ+ا+پ)(انګ ـ امع)د ودرېدلو حکم ـ د ولاړېدو حکم ـ چې او ودرېږه یا (ودرېږه) په سکولونو ـ درسو کښې عام استعمالېږي ـ

**ستېنډرډ**:- (س+تې+ن+ډ+ر+ډ)(انګ ـ اس ـ مذ)معیار ـ د څۀ څیز د پوره ښۀ والي درجه ـ

**ستېنیزا**:- (س+تې+ن+زا)(انګ ـ اس ـ مو ـ ج ـ ې)د انګریزۍ په نظم کښې د نظم یوه خاص برخه ـ قطعه ـ

**ستېنوګرافي** :- (س+تې+نو+ګ+را+في)(انګ ـ اس ـ مو)په مختصرو حرفونو کښې د لیکلو علم مختصر نویسي ـ

**ستېرنګ**:- (س+تې+ي+ر+ن+ګ)(انګ ـ اس ـ مذ)د موټر ـ لارۍ یا د جهاز په درسته لار د چلولو دستګے یار پایه ـ (عوام ورته ، ستې +رنګ وائي)

**سجاح**:- (س+ج+جا+ح)(ع ـ اس ـ مع) د یو عربۍ ښځې نوم چې په دروغ وئیلو کښې ضرب المثل وګرځېدو ـ د ے رسول الله ﷺ د ژوند په اخرنو ورځو کښې د نبوت دعوىٰ کړې وه ـ

**سجادک**:- (س+ج+جا+د)(ع ـ اس ـ نا ج ـ ان)سجده کوونکے ـ ډېرې سجدې کوونکے ـ

**سجاده**:- (س+ج+جا+د)(ع ـ اس ـ مو ـ ج :سجادې)(۱) جائے نماز د چا مشر یا پیر مسند ـ (۲) جائے نماز ـ مصلّه ـ

س سعید هغه بنده شه

چې قائم په سجاده شه (حافظ)

(۳) هغه تتحبنه چې د ډېرو سجدو کولو په وجه په تندي جوړه شي ـ

**ـــ نشین**:- هغه سړے چې د چا پیر ـ یا بزرګ مشر په مسند کېښني یا ناست وي ګدي نشین ـ

**سجاف**:- (س+جا+ف)(ع ـ اس ـ مذ)(۱) هغه پرده چې په دروازه زوړندولے شي ـ د دروازې پرده ـ (۲) سنجاف ـ حاشیه ـ هغه حاشیه چې د کپړې څلورو طرفونو ته لګولے شي ـ

**سجاوندي** :-(س+جا+و+ن+دي)(ف اس ـ مع)(۱) د علم قراءت د یو مشهور کتاب نوم ـ دا کتاب د قراءت یو ماهر لیکلے ؤ ـ چې د سیستان د سجاؤند نوے ښار اوسېدونکے ؤ ـ (۲) نقش و نګار ـ

**ـــ کول**:- نقش و نګار کول ـ د قرآن پاک په صفو نقش جوړول ـ

**سجایا**:- (س+ج+جا+یا)(ع ـ اس)د سجیتهً جمع ده ـ خصلتونه ـ خصائل ـ طبعیتونه ـ مذاجونه ـ خاصیتونه ـ

**سجده**:- (س+ج+د)(اس ـ وو ـ ج ـ سجدې ـ سجود) (۱) په عبادت کښې (خصوصاً په نمانځه کښې) عاجزۍ سره تندے په زمکه لګول ـ

حقیقي سجده هغه ده، چې د یار په لار ئې کړې
و کعبې ته چې سجده کړې دا سجده ده مجازي (خوشحال)

د قرآن پاک د یو سورت نوم ـ

ــــ **کول (چاته)**:ـ (۱) د عاجزۍ څرګندولو د پاره س یا تندے په زمکه لګول

عاشقان سجده د یار ورئي ته کاندي
د دوه بینو په هر موئي باندې غرض (خواجه محمد بنګش)

(۲) څوک خپل مالک او اقا ګڼل ـ

ــــ **په پړوتل**:- ډېر زر د سجدے د پاره سر زمکې له وړل ـ سجده کول ـ

**سجدهٔ تلاوت** :- (ئے+ت+لا+و+ت)(عف تر ـ اس ـ مو) په قرآن شریف کښې څوارلس ایتونه دي چې د هغو په باره کښې حکم دے ـ چې دا څوک په ژبه اووائي یا د چانه واوري نو سمدستي دې سجده وکړي ـ

**سجده سهو** :- (ئے+س+ه+و)(عف تر ـ اس ـ مو) په مانځه کښې د سهوې او هېرې په وجه هغه دوه خاص سجدې چې دغه مونځ پرې پوره شي ـ

**سجده شکرانه** :- (ئے+ش/شو+ک+را+ن)(عف ـ تر ـ مو) هغه سجده چې د الله پاک د څهٔ مهربانۍ د شکر ادا کولو په طور کولې شي ـ

**سجدې**:- (س+ج+دې)(ع ـ ج) (۱) د سجده ـ جمع ـ (۲) د سجده اضلافي یا مجروري حالت ـ

ــــ **کول**:ـ (۱) ډېرې سجدې کول ـ ډېر ځله تندې په زمکه لګول ـ (۲) مجازاً نمونځونه کول ـ (۳) کنایه :د چا ډېرې زیاتې خوشامندې کول ـ

**سجره**:- (س+ج+ر)(ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ سجرې) دا لفظ د اصل ټکي "سرجه" مقلوب شکل دے ـ د واورې وغېره انجماد ـ

**سجره کېدل** :- اوبه ګرنګ کېدل ـ واؤره جوړېدل ـ

**سجستان**:- (س+ج+س+تا+ن)(اس ـ مع) یو پخواني ملک چې د اسلام په اولنو ورځو کښې ځان له بادشاهي وه ـ د ایران نه نمر خاتهٔ ته په نني افغانستان کښې ؤ ـ

**سجع**:- (س+ج+ع)(ع ـ مو ـ ج ـ سجعې) د نثر د لیک یو انداز ـ چې لکه د نظم پکښې هم قافیه جملې راوړے شي ـ قافیه دار عبارت ـ شور زوږ ـ

ــــ(س+ج+ع)(ع ـ اس مو) (۱) د ګوګوشتکې اواز ـ (۲) د خوش اوازه مرغۍ اواز ـ (۳) موزون او قافیه دار کلام ـ (۴) هغه مصرعه چې پکښې د چا نوم راشي ـ (۵) هغه لفظ چې د مقفٰی عبارت په اخر کښې راځي ـ لکه ګل ګل ـ مال منال ـ وغېره ـ (د سجعې درې قسمونه دي وړاندې راځي)

ــــ **متوازن**:ـ(م+ت+وا+ز+ن)(ع ـ تر ـ اس ـ مو) د سجعې هغه قسم ته وائي ـ چې پکښې دوه لفظونه ، د وزن او د تورو د شمار په لحاظ سره خو یو شان وي ـ خوردې یعني اخري ترې ئې سره سم نه وي لکه مراتب او مراسم او اعمار او ارزاق وغېره ـ

ــــ **متوازي**:ـ(م+ت+وا+زي) (ع تر ـ اس ـ مو) د سجعې هغې قسم ته وائي ـ چې پکښې د قافیې لفظونه په وزن او د حرفونو د شمار په لحاظ سره سره سم ـ او اخري توري ئې هم سره سمون خوري لکه مهجور ـ او مجبور ـ

ــــ **مطرف**:ـ(م+ط+ر+ف) د سجعې هغه قسم دے چې د قافیې د لفظونو اخري توري ئې یو شان وي ـ خوټول توري ئې په شمار کښې یو هومره نهٔ وي ـ لکه وقار او اطوار ـ

ــــ **ګو**:ـ(ګو)(عف تر ـ اس ـ مذ) (۱) هغه لیکوال چې په نثر کښې هم وزنه الفاظ استعمالوي ـ (۲) فصیح ـ ژبه ور ـ

**سجل** :- (س+ج+ل)(ع ـ اس) (۱) د قاضي د عدالت د طرفه شرعي فېصله ـ (۲) د قاضي مهر ـ (۳) رجستر ـ قباله ـ

**سجلات** :- (س+ج+لا+ت)(ف ـ اس ـ مذ) (۱) د چنبیلې ګل ـ د چانبېل ګل ـ (۲) د خوشبوئ نه ډکه پهه ـ (۳) د کتان ربښمینه کپړه ـ (په عربۍ کښې سجلاط لیکلے کېږي)

**سِجن**:- (س+ج+ن)(ع ـ اس ـ مذ)قېد خانه ـ بندي خانه ـ جېل ـ

**سجنجل**:- (س+ج+ن+ج+ل)(اس ـ مع) (۱) آئینه ـ شیشه ـ

د خوشحـــال خاطر په مثل سجنجل شهٔ
واړه ته د خپل جمال نخښې پکښې ړدې

(۲) مجازاً ـ شراب ـ (۳) زعفران ـ

**سجود**:- (س+جو+د)(ع ـ اس ـ ج)د سجده جمع ده ـ سجده کونه ـ د سجدې کولو عمل ـ سجدې ـ

ــــ **صمدي**:ـ(ص+م+دي)(ع تر اس ـ مذ)د کُشتۍ کوونکو (پهلوانانو) په صطلاح کښې هغه سجده چې د کشتۍ نه اګاهو یا ترې وروستو کولے شي ـ

ــــ **رکوع** :ـ(ر+کو+ع ـ او)(ع تر ـ مذ)سجده کول او ټیټېدل ـ مجازاً ـ یمونځ ـ غاز ـ مونز ـ

**سجیل**:- (س+جي+ل)(اس ـ مذ )تحقیق ـ معلومونه ـ پته لګونه ـ دریافت ـ څېړنه ـ

ــــ **کول**:ـ په څهٔ معامله کښې تحقیق او څېړنه کول ـ پته معلومول ـ

**سجّیل**:- (س+ج+جي+ل)(ع ـ اس)کوتکاڼي ـ

**سجین**:- (س+جي+ن)(ع ـ اس ـ مذ)قېدي ـ بندي ـ

ــــ:ـ(س+ج+جي+ن)(ع ـ اس ـ مذ) (۱) قېد خانه ـ بندي خانه ـ (۲) هغه کتاب چې پکښې د کفارو او د ګنهګارانو عملونه لیکلے کېږي ـ (۳) هغه ځائے چې د کفارو او بدکارانو روحونه بندي وي ـ (۴) په دوزخ کښې د یو مقام نوم ـ

**سجیوي**:-(س+جي+ي+وي)(ع ـ اس ـ مو)طبعي ـ مزاج سره تعلق لرونکے ـ

**سجیه**:-(س+جي+ي)(ع ـ اس ـ مو ـ ج ـ ې) خصلت ـ عادت ـ خلق ـ طبیعت ـ مزاج ـ خصوصیت لکه د خپلې سجې په اساس ـ یا د ډېرې لوړې سجې خاوند ـ یا څښتن ـ (رـق)

**سچ**:- (س+چ)(اُر ـ مذجم)رښتیا ـ حو ـ

ــــ **په هډ**:ـ په هډ رښتونے ـ یعني په اصل ـ نسل دروند ـ

کـه ندار هم زوراوره سچ په هډئیے
په نستمن کمزوري نه کړ براوډے (حافظ)

ــــ **په سچه**:- په رښتیاؤ ـ په صدق سره ـ صادق ـ

**سُچ**:- (سُ+چ)د سوچه مخفف دے ـ کره ـ(و ــــ سوچه)

**سچل**:- (س+چ+ل)(صف ـ مذ)رښتونے ـ رښتیا ویونکے ـ

ــــ **سرمست**:ـ(س+چ+چ+ل+س+ر+م+س+ت) رښتونے او سرمست سړے ـ د سیند د یو مشهور شاعر او ولي نوم ـ

**سچه**:- (سُ+چ)(صف)د سوچه مخفف دے ـ (و ــــ سوچه)

**سُچي سُچي** :- **زوول**:ـ اِص ـ پاک او سوچه حلالي زوول چې مور او پلار ئې پاک وي ـ

چې ئې مور او پلار سُچي سُچي زوولے
پــــه هغــه کښې بــه خطا نه شي پیدا (خوشحال)

**سخ**:- (س+(ت)+س)(ق اس ـ مذ ـ مو سخه ـ ج ـ سخې)انبره ـ ګڼله ـ ګونه ـ زیات ـ

**سخه**:- (س+(ت)+س)(ق اس ـ مو ـ سخې) د میزرې د وېخ غوټه ـ

**سحاب** :- (س+حا+ب)(ع ـ مذ ـ ج ـ سحابونه)اوربخ ـ وربځ ـ اوره ـ

**سحار**:- (س+حا+ر)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)سحر ـ ځهېځ ـ

ـــ **وختي**:۔(و+خ+تي)د سحر اولنۍ وخت۔

ـــ **په لوے**:۔(پ،لو+ے)د سحر هغه وخت چې ايله ايله د سحر رڼا ښکاره شي ۔صبح صادق۔

**سحبان**:- (س+ح+با+ن)(اس مع) د عربـي ژبـې۔مشـهور فصـيح او بليـغ شاعرې چې په فصاحت کښې ضرب المثل گرځېدلے ؤ د حضور پاک ﷺ د دربار خاص شاعر ؤ۔د پلار نوم ئې وائل ؤ۔ځکه ورته سحبان وائل هم وائي۔

**سحباني** :- (س+ح+با+ني)(اس مو)فصاحت۔بلاغت۔

**سُحت**:- (س+ح+ت)(ع۔اس)حرام مال۔حرامه گټه۔

ـــ **خوړل**:۔ حرام مال خوړل

نــه لـــه گـوره دهشت شي نه له اوره
سُحت خوري زړور د سخت ساعت وبال ته (حافظ)

**سحر**:- (س+ح+ر)(اس۔مذ۔ج۔ونه)سحار۔صبح۔گهېځ۔

ـــ **خېز**:۔(خې+ز)(خپ تر۔صف) د سحر په وخت پاسېدونکے۔ډېر وختي سحر (د صبح صادق په وخت) د نمانځه د پاره پاسېدونکے۔

ـــ **سحر**:۔ د سحر وخت چې ايله سرے د خوبه پاسېدلے وي۔سحر وختي۔

زۀ ولـــې د خپل يـــار ثناء نۀ وايم
چې سحر سحر نعرې وهي تل غوک (رحمان)

ـــ **گاه**:۔(گا+ه)(خپ تر۔اس۔مذ۔ج۔ونه) د سحر وخت۔سحر مال۔

د بېدارو دې نصيب شي
ښه ددولت د سحـــر گاه (خوشحال)

ـــ **گاهي**:۔چې د سحر وخت سره تعلق لري۔د سحر وخت۔

يار مې وليد، له ورايه شکر داد ے
چې قبوله مې دعا سحر گاهي شوه (خوشحال)

ـــ **مړدان**:۔د سحر وخت چې نارينه د خوبه پاسي وختي سحر چې لا تيئـرۀ وي۔(اصلاً سحر مردان دے)

ـــ **وختي**:۔د عام سحر نه لږ وختهء۔

ـــ:۔ (س+ح/ځ+ر)(ع۔اس۔مذ)(۱) جادو۔افسون۔سنتر۔(۲) هر هغه څيز چې ليکونکے يا اورېدونکے پرې متاثر شي۔

ـــ **آميز**:۔ (آ+مې+ز)(ف تر۔صف)په څۀ کار يا خبرو کښې د جادو اثر ډېر اثر ناک يا خوښېدونکے۔

ـــ **سحر بر پائے کول**:۔ د جادو اثر کول۔

لکه سحر چې برپائے کړه
سحــــر گــــر او جادوگر (رحمان)

ـــ **بيان**:۔ (ب+يا+ن)(ف تر۔صف)(۱) هغه سړے چې ليک ئې د جادو په شان اثرناک وي۔فصيح و بلغ ليکوال۔(۲) هغه سړے چې خبرې او وينا ئې لکه د جادو اثر کوي۔فصيح او بليغ خبرې کونکے۔يا شاعر۔ډېر خوش بيانه

ـــ **بياني**:۔داسې تقرير يا بيان کونه چې لکه د جادو اثر لري ډېر فصيح او بليغ بيان يا تقرير۔

**سحر حلال** :- (ر۔ر)ح+لا+ل)(ف تر۔مذ) فصيح کلام۔شعر گوئي۔

ـــ **سامري**:۔(سا+م+ري)(ف تر۔اس۔مذ) د سامري جادو۔چې بني اسرائيلو لـه ئې د سرو زرو سخې جوړ کړے ؤ۔چې هوا سره بـه هغې بُت نه اواز پيدا کېده هغه د بني اسرائيلو ځينې خلق ددې سخې په عبادت را اړولي وو۔د حضرت موسیٰ ﷺ په غېر حاضرۍ کښې۔

ـــ **گار**:۔سحر کونکے۔سحر پېشه۔ساحر۔جادوگر۔

دربغه نور نور سحرگر په ملک پيدا شوے
چې داستا سحـــر ئې مـات کړې سحرماري (خوشحال)

ـــ **گر**:۔(گ+ر)(اس فا۔مذ۔ج۔ان۔مو:گره ج:گرې) جادوگر۔جادو کوونکے۔منتر کوونکے۔منتري ساحر۔

سحـــر گـــر په سحر توري اوبۀ پرېڼ کا
تا زما اوښکې په مخ دانې دانې کړې (خوشحال)

ـــ **گري**:۔ (گ+ري)جادوگري۔جادو منتر عمل۔

ـــ **ماتول**:۔د سحر يعني جادو جواب کول۔سحر يار جادو بې اثره کول

**سحر**:- (س+ح+ر)(ع۔اس۔ج)د ساحر جمع ده۔ساحران۔جادوگران۔

**سحرۀ فرعان** :-(ئے +ف+ر+عو+ن)(ع تر۔اس۔مذ)د فرعون جادوگران۔هغه جادوگران چې فرعون د حضرت موسیٰ ﷺ د مقابلې د پاره راجمع کړي وو۔خو هغوي په مقابله کښې پاتې راغلل او په حضرت موسیٰ ﷺ ئې ايمان راوړو۔

**سحري** :- (س+ح+ري)(فپ تر۔صف)جادو سره تعلق لرونکے۔

**سحق**:- (س+ح+ق)(ع۔اس)(۱) وړۀ کول۔مېده کول۔(۲) نرى وربخ۔(۳) د هو، د زمکې ښبانونه ورانول۔

**سحنه**:- (س+ح+ن)(ع اس۔مذ)د بني ادم د مخ رنگ۔او شکل و صورت۔

**سحور**:- (س+حو+ر)(ع۔اس۔مذ)هغه خوراک چې د روژو (روجو) په مياشت پېش مني مال خوړے شي۔

**سحيق**:- (س+ځي+ق)(ع۔صف)ډېر زيات مېده او وړۀ کړے شوے۔(دوائي رانجۀ وغېره)

**سخ**:- (س+خ)(و ــ ځخ)(اس۔مذ۔ج۔ونه)(۱) بخت۔خوش بختي۔(۲) خوش بختي۔بودل۔

سخ د آئينې د ے چـــې دې مخ وتـه تل گـوري
سخ دې لونگين د ے چې د پاس په سينه ښوري (خوشحال)

ـــ **سخ دې شه**:۔ مبارک دې شه۔

**سخا**:- (س+خا)(صف)(۱) خراب شـوے۔(لکـه مېـوه)(۲) بدبويـه۔بدبويـه (۳) گنده خېرن پېرن۔

دون کـارغۀ منقارُ گنده کاندي بر کې
چې حاضر په سخا مرداره د مردار شي (حافظ)

ـــ **پسخا**:۔(پ+س+خا)(۱) ډېر سخا۔ډېر گنده(۲) خېرن پېرن۔

ـــ **توب**:۔ (تو+ب)سني والے۔گندگي۔خېرنوالے۔

ـــ **چټے**:۔(چ+ټے)هغه سړے چې سخا کارونه کوي د صفائي خيال نۀ ساتي۔گنده کارے۔

ـــ **کول**:۔(۱) خرابه ول۔گنده کول۔(۲) بدبويه کول۔بدبوي کول۔(۳) خېرنول۔

ـــ کېدل:۔ (۱) (د ميوې وغېره) خرابېدل۔گنده کېدل۔لکه يو هاوه، **هغه هم** سخاوه (متل)(۲) بدبويه کېدل۔بدبوي پيدا کېدل۔(۳) خېرنېدل۔

ـــ **والے**:۔(وا+لے)(۱) د څۀ څيز گنده والے۔(۲) د بدن يا د جامو خېرن والے۔(۳) بد بوي۔

**سخا** :- (س+خا)(ق۔اس۔مو)نرے اواز۔د باد يا د پايپ يا د پېښو وغېره

ـــ **کول**:۔ سخاوت کول۔فياضي کول۔بخښنه کول۔

**سخاوت** :- (س+خا+و+ت)(اس۔مذ۔ج۔ونه) د مړي د جنازې نه پس چې کوم خېرات ورکولے شي۔سقات۔اسقاط۔

**سخاته**:- (س+خا+تې)(ص۔مو۔ج۔سخاتې)چيته او پلنه پوزه۔

**سخارېل**:- (س+خا+رے+ل) (مص)(و ـــ سخارېدل

**سخافت** :- (س+خا+ف+ت)(ع۔مذ۔ج۔ونه) سپکتيا۔سپکوالے۔حقارت۔کمينه توب۔رزالت۔

**سخالي خېل** :- (س+خا+لي+خېل)(اس مع)د بـائې خېلو يـو وړه څانگـه۔چې

(فېروزۍ د چغرزۍ د مليزۍ د) يوسفزي دي .

**سخاوت** :- (س + خا + و + ت) (ع . اس . مذ . ج . ونه) سخي توب . فياضي . ورکړه بخښنه.

پلار نيکۀ د چا چې بخيلان له دنيا تېر شي
نـۀ ئې په اولاد کښې څۀ خوځښ د سخاوت (حافظ)

ــــ **کول**:- فياضي کول . بخښنه کول .

**سخاوره**:- (و+گ/ړ) (ق . اس مو) (۱) د زنبق (گل) ريشه . (۲) يو بوټے چې په دارو کښې استعمالېږي . (ظفر)

**سخت**:- (س+خ+ت) (ص . مذ . مو . سخته . ج . سختې) (۱) کلک مضبوط (د نمر ضد) (۲) گران . مشل . (سخت کار) (۳) زيات (سخت ژمې) (۴) شــوم . (ډېر سخت سړے)

ــــ **پنجه**:- (پ+ن+ج) (ف تر . صف) (هغه سړے چې پنجه ئې مضبوطه وي) کنايه ډېر شوم او کنجوس سړي ته وائي .

ــــ **جان**:- (جا+ن) (ف تر . ص . مذ . مو . جانه) (۱) هغه سړے چې ساه ئې په اسانه نۀ وزي (طنزاً) د بې حيائې ژوندواله (۲) ډېر محنت مشقت کوؤنکے .

ــــ **سخت جواب**:- (ج+وا+ب) (ف تر . اس . مذ) تريخ جواب . خفه کوونکے . جواب .

ــــ **چشم**:- (چ+ش+م) (ف تر . ص) کلک سترگے . بې حياء .

ــــ **زبانه**:- (ز+با+ن) (فپ تر . ص) بد زبانه . ترخې او ناگوارې خبرې کوؤنکے . تريخ ژبے .

ــــ **زړې**:- (ز+ړې) (فپ تر . ص) د سخت زړۀ خاوند . بې رحمه . سنگ دله .

ــــ **زۀ**:- (ز+ۀ) (ف تر) (۱) هغه ليندۀ چې ژۍ (ځې) ئې ډېره کلکه وي او په اسانه رابښکلې نۀ شي . (۲) پهلوان . قوت ناک . (۳) تير انداز . مړنے غشي ويشتونکے .

ــــ **سپر**:- (س+پ+ر) (ق . مذ . ج . سپرونه) سخت سفر . مجازاً مرگ . قيامت .

ــــ **سپيارو**:- (س+پ+يا+رو) (ق اس . مذ) مشهور دارو چې د ملا د درد د پاره استعمالېږي .

ــــ **کلامي**:- (ک+لا+مي) (فپ تر . اس . مو ج . مې) نـد ژبـاني . ترخې او نـاگواره خبرې .

ــــ **گير**:- (گې+ر) (ف تر . ص . مذ . مو . گيره) سخت سلوک کوونکے . په معمولي غلطۍ يا قصور ډېره زياته سزا ورکوونکے .

ــــ **لگامه**:- (ل+گا+م) (ف تر . ص) هغه اس چې د خولې زور ئې ډېر وي . سر کشه

ــــ **مير**:- (مې+ر) (ف تر . صف) هغه سړے چې ساه ئې په ډېره گران ووځي . سخت ځان يا سخت زبان .

ــــ **نيول**:- مضبوط نيول . کلک نيول . راټينگول .

لــه سروره مــې جارباسي وشبور ته
بدسگال به سخت په ورځ د محشر نيسم (حافظ)

ــــ **وخت**:- (و+خ+ت) (فپ تر / اس . مذ . ج . ونه) د تکليف او مصيبت وخت .

**سختاړ** :- (س+خ+تا+ړ) (ق اس . مذ . مو . سختاړ د باج . سختاړې) (۱) ډېرې نرمې پخې کړې وريژې (وريځې) يو قسم ليټې . (۲) ډېر نرم اوبجن د لېټې په شان څيز .

ــــ **کول**:- (۱) وريژې (وريجې) د لېټې په شان (نرمې) پخول . (۲) لېټې شان جوړول .

ــــ **کېدل**:- (۱) وريژې (وريجې) ډېر زياې نرمې پخېدل . (۲) لېټې شان جوړېدل .

**سختاړؤل**:- (س+خ+تا+ړ+ؤ+ل) (مص) (۱) سختاړول . لېټې جوړول . (۲) په څۀ څيز کښې دومره اوبۀ اچول چې نرم شي او لېټې شان ترې جوړه شي . اوبجن کول .

**سختاړونگ**:- (س+خ+تا+ړ+و+ن+گ) (حمص) (و ـــ سختاړونه)

**سختاړونه**:- (س+خ+تا+ړ+و+ن) (حمص) سختاړ جوونه . لېټې جوړونه .

**سختاړوؤنکے** :- (س+خ+تا+ړ+وؤ+ن+کے) (اس نا . ج . کي) سختاړ جوړونکے . لېټې کوونکے . نرمه وونکے . (د پخکړې وغېره)

**سختاړېدل** :- (س+خ+تا+ړې+د+ل) (مص) د وريژو (وغېره) په پخېدو کښې ډېر زيات ترهېدل . لېټې جوړېدل .

**سختاړېدنگ**:- (س+خ+تا+ړې+د+ن+گ) (حمص) (و ـــ سختاړېدنه)

**سختاړېدنه** :- (س+خ+تا+ړې+د+ن) (حمص) د وريژو يا د بل څۀ څيز په پخېدو کښې ډېر زيات نرمېدنه . لېټې شان جوړېدنه .

**سختاړېدونکے** :- (س+خ+تا+ړې+دو+ن+کے) هر څۀ څيز چې د سخاړ په شان نرمېږي . لېټې کېدونکے.

**سختاړېدۀ**:- (س+خ+ت+ړې+د) (حمص) د سختاړ په شان نرمېدۀ . نرمېدۀ لېټې شان جوړېدۀ .

**سختن**:- (س+خ+ت+ن) (و ـــ ښتن)

**سخته** :- (س+خ+ت) (ص . مو . ج . سختې) (۱) د سخت تانيث . (۲) زيات . ډېر (د مبالغې کلمه ده) لکه سخته گرمي . (۳) (ق) سخته (د مذکر د پاره) لکه سخته بنۀ سړے دے (ق) (۴) تکليف . مشکل .

ــــ **راتلل**:- په تکليف کښې گرځېدل . مشکل راتلل . مصيبت پېښېدل .

خدا ے دې دار همت ورک نۀ کا د مردانو
پــه دنيا کــه بـاندې راشي گرانه سخته (خوشحال)

ــــ **زمکه**:- (مزکه) (فپ تر . اس . مو) (۱) کلکه زمکه . (۲) په سفر کښې گرانه قافيه او رديف .

ــــ **گناه**:- (گ/گو+نا) (فپ تر . اس . مو) (۱) د تکليف او مصيبت ورځ . (۲) د قيامت ورځ.

ــــ **په**:- (۱) په گرانه . په مشکله . (۲) د تکليف او مصيبت وخت . (چې په سخته دې پکار راشي يار هغه) (۳) په ترخه . په ناگواره (لهجه وغېره)

**سختي** :- (س+خ+تي) (اس . مو . ج . ۍ) (۱) کلک والے . (۲) مصيبت . تکليف . (۳) تنگي . افلاس . (۴) سخت سلوک . بد سلوک . (۵) بد مزاجي .

ــــ **راتلل**:- (۱) سخت وخت راتلل . تکليف . مصيبت راتلل . (۲) تنگي . افلاس . غريبي راتلل .

ــــ **دورځې**:- (۱) د تکليف او مصيبت ورځې . (۲) د غريبۍ او افلاس ورځې .

**سختې ورځې**:- (فپ تر . اس) د مصيبت يا د تکليف ورځې.

**سخر**:- (س+خ+ر) (اس . مذ . ج . سخران) د ښځې پلار يا د خاوند پلار . (فا . خسر)

ــــ:- (س+خ+ر) (اس . مذ . ج . ان) (۱) سخت تېرۀ کانړے . (۲) سخت او کلک شوے څيز .

ــــ **کول**:- (مص) سختول . کلکول .

ــــ **کېدل**:- (مص) سخت کېدل . سختېدل . کلکېدل .

ــــ **گنئې**:- (گ+ن+ې) (اس مو) د سخر د طرف خپوان .

**سخرټ** :- (س+خ+ر+ټ) (ق اس . مذ) (۱) غونډ . غونډ غوټے غوټے لرگے (۲) مجازاً مندرې او غټ سړے.

**سخره**:- (س+خ+ر) (ص . مو . ج . سخرې) (د سخر تانيث) (۱) کلک شوے سخت شوے . (۲) د چارۍ د رابښکلو پړے . (ق) (۳) وره شان غونډۍ (ظفر)

ــــ **غوټه**:- (اس . مو . ج. غوټې) کلکه غوټه . داسې غوټه چې (په اسانه) نۀ شي

پراستلے کېدے۔

**سخرے**:- (س+خ+رے)(ق۔ص۔مذ)کلک۔مضبوط۔

**ـــ کېدل**:- (صافي)څۀ کار ته محکم کېدل۔څۀ کار تـه مضبوطي ګوتې اچول۔ په څۀ کار پسې کېدل۔

**سخړه**:- (س+خ+ړ)(اس۔مو ج۔سخړې)(۱) د ګېډې کچه بچے۔(۲) کچه بچے غورځول اسقاط۔ (۳) د چارې د راښکلو پړے۔(۴) مزه چرچه۔(۵) فضول خرڅي (ظفر)(۶) کچه بچے چې د مور په ګېډه کښې وي۔بوټي۔مروت ورته ګېډۍ وائي

ـــ:(س+خ+ړ)(ق اس۔مو۔ج:سخړې)(۱) د کاريز کنلو ، يا د ولو د کنستلو واله يوه غونډه۔چې په ګډه (شريکه) کار کوي۔(۲) د قُلبې د راښکلو څرمنه۔

ـــ:(س+خ+ړ)(اس۔مو۔ج۔نې) درنګه۔مرداره۔لاش۔

ـــ:۔ (ق) س+خ+ړ)(اس مو۔ج ې)بوټي۔غوښه۔

**سخ سور** :- (س+خ+سو+ر)(اس مذ)د مرغابيو قسم دے۔

**سخط**:- (س+خ+ط ياسُ+خ+ط) ۰ ع۔ص۔مذ) تکليف سخته۔غصه قهر

وايم چې که واړه زاري زۀ راوړم خپل کورته
څـوک چـې د چا زارکه د دلبرو له سخط (خوشحال)

**سخکو**:- (س+خ+کو)(و ـــ ښنکو)

**سخکوره**:(س+خ+کو+ر)(ق اس۔مو۔سخکورې) هغه تېشه چې دوه سره لري۔

**سخکوړے**:-(س+کو+ړے)(و ـــ ښنکوړے)

**سخکه** :- (س/س+خ+ک)(اس۔مو۔ج۔ے)د تنور سيخ۔

**سخکے** :- (س+خ+کے)(اس۔مذ)(۱) د ټوپک وغېره اواز (ق)(۲) د غوښتې يا د بل ښيز په اور د سوځيدو اواز۔

**سخن** :- (س+خ+ن)(ق۔اس۔مذ۔مو۔سخنه۔ج۔سخنې)(۱) نېک پاله۔ خجسته۔ (۲) سخته۔

ـــ:(سُ+ک+ن) (اس۔مذ۔ج۔سخنونه)(۱) (ف) خبره۔(۲) شعر۔شاعري۔( س+خ+ن تلفظ هم کېږي)

**ـــ آرا**:۔(آ+را) (ف تر۔ص)خوش بهانه۔فصيح او بليغ خبرې يا تقرير کوؤنکے۔

**ـــ ارائي**:۔ (آ+را+ئي)(ف تر۔اس۔مو۔ج۔ارايئي)(۱) فصاحت او بلاغت سره خبرې کونه خوش ګوئي۔خوږ ژبتوب۔(۲) شاعري۔سخنوري۔

**ـــ اور**:۔(آ+و+ر)(و ـــ سخت ارا)

**ـــ پرداز**:۔(ف۔تر۔ص)(۱)د خبرو مرېني۔ښۀ تقرير کوونکے۔(۲)کنايه:شاعر۔

**ـــ پرور**:۔ (پ+ر+و+ر)(ف تر۔ص)(۱) په خپله خبره ټينګ اوسېدونکے۔ (۲) (ښۀ) شاعر يا ليکوال يا تقرير کوونکے۔

**ـــ پيا**:۔(پي+يا)(ف تر۔ص)(و ـــ سخن ارا)

**ـــ پيما**:۔ (پي+ما)(ف تر۔ص)تقرير کوونکے۔

**ـــ چين**:۔ (چي+ن)(ف تر۔ص)(۱) عېب لټوونکے۔(۲) اعتراض کوونکے۔

**ـــ چيني**:۔ (چي+ني)(ف تر۔اس۔مو۔ج۔ۍ) (۱) عېب لټوونکے۔عېب جوئي۔(۲) اعتراض کول۔

**ـــ دان**:۔ (دا+ن)(ف تر۔ص)په خبرو پوهېدونکے۔شاعر۔خوش بهانه۔مقرر

لکه زۀ چې سخن دان او هنر مند يم
بل بـه نۀ وي سخن دان او هنر مند (رحمان)

**ـــ دان دزماني**:۔اِص۔د خپل وخت لوي شاعر۔د ټولې دنيا مشهور پوهه او خوش بهانه مقرر يا شاعر۔

**ـــ داني**:۔ (دا+ني)(ف تر۔اس۔مو۔ج۔ۍ)په خبرو پوهېدونکے۔خوش بياني ۔شاعري۔

**ـــ سنج**:۔ (س+ن+ج)(ف تر۔اس۔مذ۔ج۔ان۔مو۔سنجه)په خبرو پوهېدونکے۔د خبرې تل ته رسېدونکے۔شاعرې په خابيو پوهه۔

**ـــ سنجي**:۔(س+ن+جي)(ف تر۔اس مو۔ج۔ۍ)په خبرو پوهېدونه د خبرې تل ته رسېدنه۔د شاعرۍ په خوبو پوهېدنه۔

**ـــ شناس**:۔(ش+نا+س)(ف تر۔ج۔ان۔مو۔شناسه۔ج۔شناسې)په خبرو پوهېدونکے۔د خبرې په رمز او تل ته رسېدونکے۔د شاعرۍ په خابيو پوهېدونکے۔

**ـــ شناسي**:۔(ش+نا+سي)(ف تر۔اس۔مو۔ج۔سي)(۱) په خبرو پوهېدنه۔د خبرې تل ته رسېدنه۔د خبرې په رمز پوهېدنه۔(۲) د شاعرۍ په فن پوهېدنه۔

**ـــ طراز**:۔(ط+را+ز)(و ـــ سخن ارا)

**ـــ فروش**:۔(ف+رو+ش)(ف۔تر۔اس۔مذ۔ج۔ان۔مو۔فروشه۔ج۔فروشې) (۱) خبرې خرڅوونکے۔خوشامد ګرے۔ (۲) شاعر۔

**ـــ فروشي**:۔(ف+رو+شي)(ف۔تر۔اس۔مو۔ج۔ۍ) خبرې خرڅوونکے۔د خبرو خروڅول مجازاً۔خوشامند ګرې کول۔خوشامد ګرتوب۔شاعري۔

**ـــ فهم**:۔ف+ه/ۀ+م)(ف تر۔اس۔مذ۔ج۔ان۔مو۔فهمه)(۱) په خبرو پوهېدونکے۔د خبرې تل ته رسېدونکے۔(۲) د شاعرۍ په خوبيو او عېبونو پوهېدونکے۔ شاعر۔

**ـــ فهمي**:۔(ف+ه+مي)(اس مو۔ج۔ۍ)(۱) په خبره پوهېدنه۔د خبرې تل ته رسېدنه (۲) د شاعرۍ په خوبيو او عېبونو پوهېدنه د شاعرۍ قدرداني۔

**ـــ ګداز**:۔(ګ+دا+ز)(ف تر۔اس۔ج۔ان۔مو۔ګدازه۔ج۔ګدازې) پـه صـيحه ژبه کښې خبرې يا تقرير کوونکے۔اثرناکې خبرې يا تقرير کوونکے۔

**ـــ ګستر**:۔(ګ+س+ت+ر)(ف تر۔اس۔مذ۔ج۔ان۔مو۔ګستره۔ج۔مو ګسترې) (۱) فصيح کلام کوونکے۔(۲) شاعر۔

**ـــ ګستري**:۔(ګ+س+ت+ري)(ف تر۔اس۔مو۔ج۔ۍ)(۱) په فصاحت سره خبرې کول۔ (۲) شاعري۔

**ـــ ګو**:۔(ګو)(ف تر۔اس۔مذ)(۱) فصاحت سره خبرې کوونکے۔مجازاً۔شاعر ۔(اصلاً سخن ګوئي دے۔ځکه جمع ئې سخن ګويان راځي او مؤنث ئې سخن ګويه)۔

**ـــ ګوئي**:۔(ګو+ئي)(ف تر۔اس۔مو۔ج۔ۍ)(۱) خبرې کونه۔يعني۔فصاحت سره خبرې کول۔(۲) شاعر۔

**ـــ ور**:۔(۔ور)(ف تر۔اس۔مذ۔ج۔ان۔مو۔وره۔ج۔مو۔ورے) (۱) د خبرو ښنبتن۔په خبرو پوهېدونکے۔(۲) شاعر۔

**ـــ وري**:۔ (و+ري)(ف تر۔مو۔ج۔ورۍ) (۱) د خبرو ښنبتن توب په خبرو پوهېدنه۔(۲) شاعري۔

**سخندرکے**:-(س+خ+ن+د+ر+کے)(اس۔مذ۔ج۔کي)(و ـــ سخوندرکے)

**سخو** :- (س+خو)(و ـــ ښخو)

**سخواړ**:- (س+خ+وا+ړ)(اس۔مذ۔مو۔سخواړه۔ج۔سخواړې)چيته او پلنه پوزه۔

**سخوتن**:- (س+خو+ت+ن)(ق۔مذ)ګرمه ايره۔ګرم خاکستر۔

**سخوختن**:-(س+خو+خ+ت+ن)تودې ايرې۔ګرم خاکستر۔سخوتن۔ايره خول۔

**سخور**:- (س+خ+و+ر)(اس۔مذ۔مو۔سخوره۔ج۔سخورې)نېک بخت۔ښۀ پال واله۔خجسته۔

**سخوريز**:- (س+خو+ري+ز)(اس۔مذ)يو قسم ګياه ده چې د دورش په شان وي۔

**سخورے** :- (س+خو+ر+ے)(ق۔اس۔مذ)د يو بوټي جرړه ده چې ورته سخوريز وائي۔او ناجوړه ګډوله د دارو په طور ورکولے شي۔

**سخونيتے**:-(س+خو+خ/س+تے)(اس۔مذ۔ج۔ي)(۱) د جولاګانو ماکو۔ (۲) وبنکے۔د خولې ګوټ يا خوشه۔

**سخول**: - (س+خ+و+ل)(ق - اس - مذ) تلفظ -

**سخول**: - (س+خ+و+ل)(و--- څخول)

**سخوند**: - (س+خ+و+ن+د)(اس - مذ - ج - ونه)شخوند -

**سخوندر**: -(س+خ+و+ن+د+ر)(اس - مذ - ج - آن - مو - سخوندره - ج - سخوندرے) (۱) ځوان غوے - (۲) مجازاً غټ پټ زلمے سړے - مست زلمے -

**سخوندرگی**: - (س+خ+و+ن+د+ر+ک+ی)(اس - مو)د سخوندر کے تانیث - سخوندره - (رق)

**سخوندرکے**: - (س+خ+و+ن+د+ر+کے)(اس - مذ - ج - سخوندرکیان - مو - سخوندرکی - ج - سخوندرکیانې)وړوکے سخوندر - هغه سخے چې ایله ځوان شوے - وي -

**سخه**: - (س+خ)(و--- څخه)

--- :- (س+خ)(اس - مو - ج - سخې (۱) کینه - انتقام - بدل - (۲) د بل په تکلیف یا غم خوشحالي څرګندول -

**سخهار**: - (س+خ+ها+ر)(اس - مذ)نرے اواز-

**سخے**: - (س+خے)(ق - اس - مذ) سړے -

--- :- (س+خے)(اس - مذ - ج - سخي)(۱) د غوائي بچے - څۀ مې په هغه سپرلي نۀ غوا ځري نۀ سخي - (متل)(۲) یوه لوبه ده د وړو نه علاوه لوے هم کوي - د مقابلې کسان یوه پښه ونیسي او یو بل لـه دیکې ورکوي - د کوم سړي چې دویمه پښۀ په زمکه ولګي هغه بېلي -

**سخي**: - (س+خي)(ص - مذ - ج - آن) سخاوت کوونکے - فیاض - ډېره ورکړه او بخښنه کوونکے -

--- **توب**:- (تو+ب)(اس - مذ) سخاوت - د سخاوت عمل فیاضي-

**سخېدل**: - (س+خې+د+ل)(و--- څخېدل)

**سخېزل**: - (س+خې+ز+ل)(اس مع)د اعشازو یا اشیزو یوه ځانګه ده چې اچکزي دي-

**سخیف**: - (س+خې+ف)(ع - صف - مو - ه)(۱) کم عقل - بېهوده - (۲) کمزوري - لکه :دا دلائیل سخیف دي (رق) (۳) سپک - (۴) ورسته کپړه -

--- **الرئے**:-(فُ+ر+ا+ئے)(ع تر - صف)هغه کس چې رائے ئې د بې عقلۍ وي - بې عقله - کم پوهه سړے -

**سخیل**: - (س+/خي+ل)(اس مع)د شېرانو د اوبه خېلو یوه ځانګه ده -

**سر**: - (س+ر)(اس - مذ - ج - سرونه)(۱) د حېوان وجود اهمه برخه چې خوله پوزه سترګې او مازغۀ (ماغزۀ) وغېره - (۲) اصـل سـرمایه - اصـل زر (۳) سـردار ، مشـر ، سـرغنه (۴) (ف) د ځـاروو پـه شـمېر کښـې د سـر لفـظ استعمالېږي - لکه لس سره (مال) دے (اس)(۵) مخ ، سطح لکه د زمکې په سر - یعني د زمکې په مخ - په روئے زمین یا د اوبو په سر-(۶) د بني ادم یا د حېواناتو د تندي نه پورتنۍ حصه (سرګرول - (۷) د څۀ (بې ځانه) څیز پورتۍ حصه(۸) د غرڅوکه - د غر برنۍ حصه لکه غر لوے (لوړ) دے په سر ئې لاره -(متل)(۹) شورو - (شروع) اغاز (۱۰) غاړه ژۍ چې لکه د سیند یا د جبل بل سر-(۱۱) د لوښي هغه حصه چې د لوښي دننۍ حصه پرې پټؤلے شي - (اردو: ډهکنا)(۱۲) د څۀ څیز غوره حصه - (۱۳) د "في" (عربي) په معنٰی کښې لکه سړي سر : في کس- (۱۴) انجام - لکه سر تـه رسول - (۱۵) غـوره - چوڼ - انتخاب - د سړي سر یا سړي-(۱۶) د مېوو په کرېټونو کښې هغه دانې چې د نورو د پاځه کښېښودے شي - دا غټې ښکلې او بخې وي (۱۷) طرف - لور

شرع منډه د نبي ده چې ولي دے
یو قدم په بل سر نۀ درومي بې منډ (خوشحال)

(۱۸) جړه - وېخ - جرړه - لکه :دغه ټول سر د پیاز په ډول وي -

--- **اخستل**:- (۱) خپل اصل سرمایه اخستل - اصل نۀ اخستل - (۲) قصاص یا بدل اخستل-(۳) باغي کېدل - نافرماني کول - سرکشي کول -(۴) سر پورته کول -

--- **سر اړمول**:- بنګو اړمول - مقابله کول -

--- **اړول**:- (۱) مخ اړول - مخ بل خواته کول - روګرداني کول - (۲) د سندرو په وېنا کښې د سر په مصرع کښې نورو سندرغاړو سره شریکېدل -(۳) مجازاً د چا تائید کول - د چا خبرې تـه صحیح - ټیک وئیل -(۴) د سر وېښتۀ سمول - (۵) نـاوې خپل زوم تـه ورسپارل - لکه:د فکابی سر ئې واړوۀ - یا د فلانی سر ئې اړولے دے - (۶) سر غړول - نافرماني کول - (اق)

--- **اسمان ته رسېل**:- (۱) ډېر لوړېدل - قدزیات زیاتېدل -(۲) په مرتبه کښې ډېر اوچت ځاے ته رسېدل -

--- **افسر**:- لوے افسر - د سر افسر -

--- **انجینئر**:- لوے انجینئر - چیف انجینئر -

--- **انډولول**:- په څۀ کار کښې شراکت کول - په څۀ معامله کښې شریکېدل -

--- **انغرے کول**:- (۱) د پوهولو د پاره ډېره ګفتګو کول -تر داچې د سر ماغزۀ ئې ویشېږي - ډېر سوالونه کول -چاته-

--- **اودل**:- سرکول -د سرو وېښتۀ کمڅۍ کول -

--- **اودل**:- (رق) (و---سرایښود)

--- **اوسود**:- اصل سرمایه او ورسره نفع - مجازاً هر څۀ - کل مال دولت -

تېره دې ځواني شوه پوچ په لوبو ناداني شوه
سر او سود د بیالو محروم مـه ځه ومولی له (حافظ)

--- **اوښکل/اکاږل**:- راپورته کېدل -اوچتېدل -

که تن زمکه کړې،زړۀ تُخم،باران اوښکې
لکـــه نخل بـــه سرو کاږي لــه خاکه (رحمان)

--- **ایستل**:- (۱) سر د اوبو وغېره نه بهر وښکل - (۲) د یو غېبېدو نه پس بل کم ځاے کښې ښکاره کېدل - (۳) لاړ ایستـل - مشـورو کـول (ظفـر) (۴) کوم خاص ځاے ته رسېدل یا په کوم خاص ځاے کښې ښکارېدل -

--- **ایښودل/ کښېښودل**:-(۱) غاړه کښېښودل - خبره منل - وېنا تسلیمول (۲) په چا یا په څۀ سر قربانول - د ځان قرباني ورکول - (۳) خوب کول - د خوب د پاره بالنبت وغېره سر کښېښودل -

--- **ایښودل، د خبرې**:- خبره شروع کول - د خبرې شورو کولو د پاره اولنۍ خبره کول

--- **باج کول**:- سر قربانول - سربائیلل -

--- **باختن**:- (با+خ+ت+ن)(ف مص تر)سر بائیلل - سر قرباني کول - د ځان قرباني ورکول

--- **باز**:- سر قربانوونکے -

چې په یوه دېدن یې سر شیندۀ سربازو زیلو
د هغو جونو جمال حسن سنګار پاتې نۀ شو (حافظ)

--- **بازل**:- سر قربانول - سرور کول-

سربـازم،وصـال دې غواړم هغه زۀ یم
لکه خوک چې په بل لوري غواړي ورکه (خوشحال)

--- **بـازي کـول**:- د سـرونو لوبـه کـول - پـه مقابلـه کښـې سـر پـه داؤ کښـې کښېښودل -ل د سر قرباني ورکول-

چــې څرګنده سربازي کاندي د تورو
زۀ خوشحال ختک تر هغه هغه ځار شم

--- **باسل**:- سر برابرول - سر وررسول - مقابله کول-

چـې فلک سره سر باسي
په همت کښې هغه زۀ یم (خوشحال)

**ـــ بالا**:۔ اوچت سرے۔

ښائسته که په جهان هرګوره ډېر وي
دے پـــه حسن کښې په وترو سر بالا (خ،ب)

**ـــ بالا کېدل**:۔ اوچت سرے کېدل۔

يار چې سر د يار په تنګ کښې بريده کا
پـــه دعوٰی د محبت کښې،سر بالاشي (حافظ)

**ـــ**:۔ياسين سره پيوندل۔ سر په بالنبت کښېښودل۔

کــه نور مهر دې نشته څۀ خوکړه د حال پوښتنه
چـــې تا په زړۀ ويشتلے سرياسين سره پيوند کا (خوشحال)

**ـــ بائيلل/بيلل**:۔ (۱) په مقابله کښې سر نقصان کول۔سر ورکول۔ وژلے کېدل۔ (۲) اصل سرمايه ضائع کول۔اصل پنګه هم په نقصان کښې تلل۔ (۳) په جوارئ کښې خپله اصل پنګه هم بېلل۔ (۴) سر قربانول (سر باج کول)

**ـــ بر**:۔(س+ر+ب+ر) سر په سر۔ برابر۔ پوره اندازې مطابق۔

**ـــ بربنډول**:۔(۱) د سر نه ټوپۍ يا پټکے يو لوپټه لرې کول۔(۲) بې عزته کول۔ (۳) د بدعا د پاره د سر نه پټکے يا لوپټه وغېره لرې کول۔عقيده د چې په دې حالت کښې دعا ضرور قبلېږي۔

**ـــ برهنه**:۔ (ب+ر+ه+ن) (ف تر۔صف)سر تور سر۔ بربنډ سر۔

**ـــ بريده**:۔ سر پرېکړے۔

نه قدم لري ندم همدم د ښکليو
ګوره شمع بائي بسته سر بريده (حميد)

**ـــ بست**:۔ (ب+س+ت)(ف تر۔صف) سر ئې تړلے يا ګېر وي۔ يعنې ازاد نۀ وي۔

**ـــ بسته**:۔ (ب+س+ت)(ف تر۔صف)(۱) هغه کڅوره۔ ګوډے وغېره چې سر ئې تړلے وي۔يعنې دا معلومه نۀ وي چې په دې کښې څۀ دي۔ (۲) پټ۔ نارڅرګند نابښکاره۔سر تړلے۔ (۳) (ف) ټول۔يمه۔تمام۔

**ـــ بسر**:۔ (ب+س+ر) (ف تر۔صف)(۱) ټول۔همه۔کل۔ (۲) سر په سر برابر

**ـــ بصحرا**:۔(ب+ص+ح+را)(ف تر۔صف)په صحرا۔ (مېرو) سر سوے۔اواره۔لېونے۔

**ـــ بفلک**:۔(ب+ف+ل+ک)(ف تر۔صف) هغه سر ئې تر اسمانه رسېدلے وي۔ مجازاً ډېر اوچت۔ ډېر لوړ۔

**ـــ**:۔(ب+ک+ف)(ف تر۔صف)سر په تلي کښې ايښے۔مرګ ته تيار۔

**ـــ بګرېبان**:۔(ب+ګ+رې+با+ن)(ف تر۔صف)(۱) سر په ګرېوان۔فکر مند۔په سوچ کښې۔ (۲) ملامته۔شرمنده۔

**ـــ بلند کېدل**:۔ اوچت سرے کېدل۔

لکه يار مې سر بلند دے په جهان کښې
پـــه تـــاثير کښې زۀ يم هسې سربلـند (رحمان)

**ـــ بمهر**:۔(ب+م+ه+ر)(ف تر۔صف)(۱) هغه چټې۔خط۔يا فرمان چې د پاځه پرې د راستونکي مهر لګېدلے وي۔په مهر سره بند کړے شوے۔(۲) پټ۔ ناڅرګند۔

**ـــ بندول**:۔(۱) خپله سرمايه په څۀ کار کښې لګول۔(۲) خپل ځان دهن کول۔ (۳) د چانه مزدوري په بدل کښې پيشګي رقم اخيستل۔

**ـــ بها**:۔(+ها)(ف تر۔اس۔مو)د سر قيمت۔فديه۔د بت۔

**ـــ بهاورکول**:۔ د سر قيمت ورکول۔د قاتل د طرفه د صلحې په وخت د مقتول د سر په بدله کښې اوښان يا نغدې روپۍ۔د مقتول وارثانو له ورکول۔

**ـــ بها قبلول**:۔ د سر قيمت قبلول۔د مقتول د وارثانو د قاتل د طرفه د قتول د سر قيمت اخستل۔ ديت قبلول۔

**ـــ به دې څۀ خورېوم**:۔ محاوره۔ يعنې اوږد تقرير درته نه کوم۔لنډه او د مطلب خبره کوم لنډه او مطلب خبره داده۔

**ـــ به دې څۀ ازوم**:۔ سر به دې څۀ خورېوم۔محاورةً د لنډې او مطلبي خبرې کولو په موقع وئيلے شي چې په ډېرو اوږدو خبرو به د سر څۀ ګرځوم خو لنډه دا ده چې۔

**ـــ بيه**:۔(ب+ي)(فپ تر۔اس۔مو۔ج۔يې) سر بها۔د سر قيمت۔ديت۔

**ـــ**پټه ول:۔(۱) سر د باد باران بچ کول۔مجازاً۔کور يا کوټه جوړول۔ (۲) خپل ځان محفوظ ځاے ته رسول۔

**ـــ پر کښېښودل/ايښودل**:۔ سر قربانول د چا يا د څۀ نه۔ځان فدا کول۔د خپل سر قرباني ورکول۔د چا يا د څۀ د پاره وژلے کېدل۔

**ـــ پر ګرځول**:۔ (۱) پرېشانه کول(۲) غمخواري کول (ق) (۳) مداخلت کول۔(ق)

**ـــ پرله ګرځول،دچا سر خوړل**:۔ ډېرې خبرې يا اوږد بيان کول۔لکه:څۀ سر به دې پرله ګرځوم۔

**ـــ پرورکول**:۔ (۱) سر په څۀ ، يا په چا قربانول۔د سر قرباني ورکول۔(۲) د څۀ څيز په بدلون کښې د دغې څيز نه علاوه زياتي څۀ قيمت ورکول۔لکه :دا قلم ئې فلاني سره ايشکے ، شل افغانۍ مې سر پر ورکړ۔

**ـــ پرېکول**:۔ سر قطع کول۔الالول وژل۔

**ـــ پرېکېدل**:۔ سر غوڅېدل۔حلالېدل۔وژلے کېدل۔

**ـــ پرې کښېښودل**:۔ (۱) سر ايښودل۔لکه: په بالنبت۔ (۲) څۀ څيز پټۀل۔

**ـــ پښې**:۔(۱) د حلال شوي څاروي۔سر او پښې۔(۲) محاورةً۔نخرې۔انې بانې

**ـــ پښې کول**:۔ (۱) په څۀ کار کښې انې بانې کول۔نخرې کول۔خبره درنول (۲) ضد کول۔(خصوصاً بې ځايه)

**ـــ پښې نۀ لرل**:۔ د څۀ کار شورو او اخر نه ښکارېدل مهمله او په پوهه کښې نۀ راتلونکے۔خبره کول۔

**ـــ پلټول**:۔ په سر کښې سپږې کتل۔سر کتل۔سر لټول۔

**ـــ پورته کول**:۔ (۱) د خوب نه پاځېدل۔ (۲) د مقابلې د پاره تيارېدل۔

**ـــ پورته کولو ته نۀ اوزګارېدل**:۔ مجازاً۔ډېر نا اوزګاره "بودل" په کار کښې سخت بوخت"(بودل)۔

**ـــ پورته کول نه پرېښودل**:۔ (۱) يو پوټے شان مهلت هم نۀ ورکول۔ (۲) د مقابلې د پاره د تيارېدلو موقع نۀ ورکول۔

**ـــ پوښلے**:۔(پو+خ/ش+لے)په سر يا د څۀ څيز د پاسه پرده اچولے۔پټ کړے۔د پاسه نه پښلے۔

**ـــ په افسر کول**:۔ په سر تاج کښېښودل۔بادشاه کول۔

تخت ملنګ لـــه ورکه،ګردمن سر ئې په افسر که
اوکـــرې پـــه زمـکـــه د زعـفرانو کـا ريږې (حافظ)

**ـــ په پښو کښې کښېښودل (دچا)**:۔ په پښو پرېوتل۔ډېره عاجزي او منت کول

**ـــ په پښو کښېښودل**:۔ عاجزي کول۔بندګي کول۔

مبتلا بلبله سر د ګل په پښو ږدي
لکــه برهمن د بت بت پرسني کا (خوشحال)

**ـــ په تلي کښې کښېښودل**:۔ د سر قربانۍ ته تيارېدۀ۔د سربلندي لګول۔په جنګ کښې د سر پروا نۀ کول۔

**ـــ په تلي کښې ګرځول**:۔ (۱) هر وخت د سر قربانۍ د پاره تيار "بودل" د سر پروا نۀ کول۔ هر وخت مرګ ژوبلے ته اماده "بودل"۔

**ـــ په څرې وهل**:۔ په کشتۍ کښې په ککرې ډغره ورکول۔(ق)

**ـــ په څيږې**:۔ سرلاټے۔سرلک۔سر لک کونے په سر بازيګره خوړل۔

**ـــ ګرځول**:په سر بازيګره اړول۔سر لاټے کول۔

**ـــ په خلاصېدل**:۔ (ق) (ـــ سر په رسېدل)

**ـــ په خولې کول، چاته**:۔ ډېر زيات تنګول۔

**ـــ په دواړه لاسه وهل**:۔ ډېر زيات افسوس کول۔ارمان کول۔

خورې شونډې به ئې نه مومې،وهغه ئې
هـر پـــه دواړو والاسو،وايه ومګس ته (خوشحال)

**ـــ په رسېدل**:۔ سرورته رسېدل ۔ مطلب ۔ چې په خبره پوهېدل۔ لکه: د فلاني سر زما په خبره ورسېد ے ۔

**ـــ په زمکه وهل**:۔ سجده کول ۔(طنزاً)

که هزار ځله څزک سر وهي په زمکـه
یـا پـه صوم تر شمعې وروليي ناف (خوشحال)

**ـــ په زنګون/زنګانۀ کښېښودل/ایښودل**:۔ مجازاً فکر مند کېدل ۔په تصوراتو کښې بوختېدل ۔

**ـــ په سر**:۔ (۱) برابر (په تول کښې) یو شان ۔ (۲) نه نفع نۀ نقصان ۔ نه څۀ ګټلي نۀ څۀ بیللي ۔ (۳) سرونه سره جنګېدلي ۔(۴) مقابله ۔ (ق)

**ـــ په سرایشول**:۔ سر په سر بدلول ۔ څۀ څیز د نفعې نقصان یا کمي زیاتي نه بغېر چاسره بدلول ۔ بې ځایه قیل او قال او بحث کول (ق)

**ـــ په سر کېدل**:۔ (۱) په تجارت یا جواری کښې خپله پنګه په ځا ے کول ۔ نۀ څۀ ګټل نه څۀ بیلل برابر کېدل ۔ بې ځایه قیل او قال او بحث کول ۔

**ـــ پـه سرور کول**:۔ (۱) د یـو څیـز مقدار ، د بـل څیـز هم هغـه همره مقدار سره بدلول ۔ لکه سېر پیاز د سېر اوړو پـه بـدل کښې ورکړ ے شي ۔ (۲) پـه څو چې یو څیز اخیستے شو ے وي هم هغه قیمت خرڅول ۔

**ـــ په سمڅونښتل**:۔ (ق) سر په غارونو کښې ننـه کول کنایـه: بغېـر د صـلاح نه هر کورته تلل ۔

**ـــ په سنګ وهل**:۔ سر په کاڼي وهل ۔ ځان مصیبت کښې اخته کول ۔

هر زیـردست چې زېردست ته ملابسته کا
سر په سنګ وهي تحقیق دښمن د ځان کا (حافظ)

**ـــ په سوري کول**:۔ (۱) د سر د پاره سور ے پیدا کول ۔مجازاً کور یا کوټه جوړول ۔ (۲) محفوظ ځا ے ته تلل ۔ پناه غوښتل ۔ د تکلیف ،مصیبت نه ځان خلاصول

**ـــ په کرښه کښېښودل**:۔ اطاعت کول ۔ فرمانبرداري اختیارول ۔

**ـــ په ګرحول**:۔ (۱) مداخلت کول ۔ د بل چا په بحث وغېره کښې دخـل ورکـول لکه :څۀ سر په ګرځوې دوي پربږده چې پخپله کښې لګیا وي (۲) غمرازي کول ۔ غمخواري کول ۔ لکه:فلانے په ما سر نۀ ګرځوي ۔

**ـــ په ګروه اچول**:۔ (ق) (وـــ سر په ګرېوان کول)

**ـــ په ګرېوان کښې کول**:۔ کنایه: ځان سره سوچ کول ۔ فکر کـول ۔ پـه خپـل عمـل غور کول ۔

**ـــ په ګرېوان کول**:۔ سر ګرېوان ته ښکته کول سوچ او فکر کول ۔

**ـــ په ګور کول**:۔په بوډا کول ۔ مرګ ته نژدې کول ۔

چې حمید غونډې بلبل ئې سې په ګر که
هغه ورځ بـــه د بـاګرام په ګلو هے وي

**ـــ په لاس اړول**:۔ (ق)(وـــ سر به تلي ګرځول)

**ـــ په لاس کښې اخستل**:۔ (ق)(وـــ سر په تلي کښې کښېښودل)

**ـــ په لکۍ کول**:۔ (۱) اړولے کول ۔ (۲) د سر ټکي (حروف) اخر تـه او د اخر ټکي سر ته راوړل ۔

**ـــ پـه مخکښې ایښـودل**:۔ (ق)سـر وړانـدې کښېښـودل ۔ قربانېـدل ۔ یـا مطیـع کېدل ۔

**ـــ پـه نور/غر کښې نه/سپینول**:۔ کنایـه:ډېر تجربـه کـار او پوهانـد "بـودل" ډېره تجربه او مشاهده لرل ۔

**ـــ په ورکول**:۔ د کمې پوره کولو د پاره ادا کول لکه دا قلم ئې د فلاني قلم سره ایش کړ،شل افغانۍ ئې سر پر ورکړ ۔(ر۔ق)

**ـــ په ورۀ کول**:۔ د چا د کور په ور کښې داخلېدل ۔ چاکره تلل ۔ پېښه کول ۔

وائې ستا پـــه عبادت زما رضا ده
مګر ومرم هاله سر د ما په ورۀ کړې (خوشحال)

**ـــ په وېښتو نۀ درنېږي**:۔ اوښ پـه غلبېـل نـۀ درنېږي ۔ سترګې په خپلو ښو نۀ درنېږي خپل ورور عزیز په چانۀ بوج کېږي ۔

**ـــ پېچل**:۔(۱) مخ ګرځول ۔او اعراض کول ۔ (۲) سر کښې کول ۔بغاوت کول ۔

**ـــ تاوول**:۔سر اړول سر غړول ۔ حکم نۀ منل ۔ نافرماني کول ۔ سر تابي کول

**ـــ تر اسمانه تېرول**:۔ (وـــ سر اسمان ته رسېدل)

**ـــ ترپا**:۔سر تر پښو ۔ کُلهم ۔

د خوشحال دلبره سر تر پا ښائست

**ـــ تر پایه**:۔(ت+ر+پا+ي)(فپ تر ۔ ص)د سر نه پښـو ۔ د اول نـه تر اخره پوره ۔ تمامي ۔ ټول ۔

درست جهان ئې په غم ډوب کړه سر تر پـایه
کـه ګــدا د ے د دې دهـر کـــه ملوک (رحمان)

**ـــ تر سره**:۔د یو سر نه بله سره پوره ۔ ټول ۔ تمامي ۔

**ـــ تړل**:۔ (۱) د درد وغېره له کبله د سر نه رومال وغېره چاپېره کول او تړل (۲) د څۀ خبرې تدبیر کول ۔ (ق)

**ـــ تړلے**:۔(ت+ړ+لے) بند ۔ چې سر ئې تړلے شوے یا بند کړے شوے وي ۔ لکه سر تړلے د بلے ۔

**ـــ تلل**:۔ وژلے کېدل ۔ قتلېدل

تن ئې پاتې شي بې سره ،سر ئې لاړ شي
ســـردار کلـــه د ے سردار د دې دنیا (رحمان)

**ـــ تندے وهل**:۔ محنت خواري کول ۔کوښښ او سعي کول ۔

**ـــ تنها**:۔(ف تر ۔ صف)یک یوازې ۔ بېخي یوازې ۔

**ـــ تودېدل**:۔ تکلیف یا هېبت کښې ګېرېدل ۔ خدا ے دې سرمه تودوه ۔

**ـــ تودول**:۔(مص)(۱) د سر وېښتو له تور رنګ ورکول ۔ (۲) (ق) بـې عزتـه کول

**ـــ تور رنګ**:۔(تو+ر+ن+ګ) (وـــ سر تورونه)

**ـــ تورونه**:۔(تو+ر+و+ن)(حمص)(۱) د سر وېښـۀ تورونـه ۔ (۲) (ق) بې عزتي ۔ بې عزتي کونه ۔

**ـــ تور بدل**:۔(مص)(۱) د سر نـه ټوپې ۔ پټکے یا لوپټه لرې کېدل ۔مجازاً بې عزتي کېدل ۔ (۲) مجازاً بې خاونده کېدل ۔کونډه کېدل ۔

**ـــ تور بدنګ**:۔(تو+رې+د+ن+ګ)(وـــ سر تور بدنه)

**ـــ تور بدنه**:۔(تو+رې+د+ن) س ، سر تـوره کېدنـه ۔ د سر نـه ټوپۍ پټکے یا لوپټه لرې کېدنه ۔ مجازاً ۔(۱) بې عزتي ۔ (۲) کونډه کېدنه ۔ د خاوند مړینه

**ـــ تور بــدونکے**:۔(تـو+رې+دو+ن+کے)(اس ۔ مـف ۔ ج ۔ کې)مجـازاً ۔ بـې عزتـه کېدونکے ۔

**ـــ تور بدۀ**:۔ (تو+رې+د)(اس ۔ حمص)(۱) د سر نـه پټکے یا لوپټـه لرې کېـدۀ ۔ مجازاً ۔ بې عزتي ۔ (۲) بې خاونده کېدۀ ۔ کونډېدۀ ۔

**ـــ تورې سرې مړل**:۔ داسې کار کول چې انجام ې وژلے کېدل یا سخت نقصان رسېدل وي ۔

**ـــ ته**:۔ (ت) د سر طرفه ته ۔ د سر په لورې ۔ د سر په خوا کښې ۔

**ـــ ته دې خېر (وي)**:۔ (په ۔ کلمـه دعائیـه)دعائیـه جمله ده ۔ ستاسر دې روغ وي ۔ خېر اباد ۔

**ـــ ته رسول**:۔ انجام ته رسؤل ۔ پوره کول ۔

**ـــ ته نۀ په رسېدل**:۔ (ق)د چا د خبرې مطلب ته نۀ رسېدل ۔

**ـــ ټکول**:۔د چانه ډېر شکایتونه کول ۔ د چا د بـد عمـل یا شـرارتونو نـه تنـګ راتلل ۔

**ـــ ټیټول(چاته)**:۔(۱) سر ښکته کول ۔ د چا بالادستي تسلیمول ۔ د چا زور منل ۔ ماتې منل ۔ د چا اطاعت کول ۔ (۲) د شرمندګۍ اظهار کول ۔

**ــــ ټيټول (دچا په لوري)**:عاجزي کول ـ بندګي کول ـ

که يو ځلــه سر د خداے په لوري ټيټ کړې

پــــه قيامت بـــه سر بلنــد سې تـــر هـــر چا (رحمان)

**ــــ ټيټېدل**:ـ(۱) د چا زور طاقت تسليمول ـ (۲) (چاته) شمنده کېدل ـ ملامتـه کېدل

**ــــ جدا کول**:ـ سر پرېکول ـ وژل ـ

**ــــ جنبان**:ـ(۱) سر خوزوؤنکے ـ د "هو" علامت ـ(۲) ــــ "دنه" علامت ـ (۳) په وجد کنبې (سر خوځوونکے)

**ــــ جوړول**:ـ(مص)د سر وېښتۀ قطع کول ـ د سر وېښتۀ درستول ـ

**ــــ ځړول**:ـ(وــــسر ښکته کول)

**ــــ څټل**:ـ کنايه: سپېرۀ کېدل ـ منحوس کېدل ـ د يو کس د سپېرۀ توب لـه کبله بل سړے هلاکېدل ـ لکه: فلاني د پلار سر وڅاټۀ ـ

**ــــ څنـډل**:ـ(۱) د شکايت د اظهـار د پـاره سـر خوځـول ـ(۲) د پښـېماني اظهار کول ـ (۳) سر خوځول ـ سر ښي او ګس طرف ته يـو خـوا بـل خـوا خوځول ـ (دا د انکار علامت دے) ـ انکار کول ـ نۀ قبلول ـ نۀ خوښـول ـ ناخوښي ښکاره کول ـ سر ښورول ـ

**ــــ ښې سمول**:ـ (۱) ټول سنګار کول ـ(ځان جوړول) (۲) په څۀ کار کښې زياتې خوبي ښکلا پيدا کول ـ درستول ـ

**ــــ ښې کول**:ـډول سنګار کول ـ(ځان) ـجوړول ـ ښائسته کول ـ

**ــــ ښار ښنېدل**:ـ کنايه: داسې کار يا خبره کول چې وهل پرې وخوري ـ

**ــــ خرڅول**:ـ(۱) د سر په بيعه څۀ کار کول خپل سر پـه خطره کښـې اچـول ـ (۲) د فوځ نوکري کول ـ

**ــــ خرئيل**:ـ (۱) سر کلـول ـ (۲) (د ښـځو پـه حقلـه) بدنامـه کېـدل ـتـورې پـورې کېدل ـ تومتي کېدل ـ

**ــــ خرئيلے**:ـ (خ+ر+ئي+لے)(فپ تر ـ صف)(۱) هغـه سړے چې سر ئې خـرېلے شـوے وي ـ (۲) هغه ښځه چې سر ئې خرېلے شـوے وي ـ پخوا بـه د ځينـو بدکاره وينځو د شرمولو د پاره سرونه خرېلے شو ـ ځکه بدکاره يا بدنامـه ښځـه ـ اوس عموماً عـامو ښـځو تـه (چې سر ئـې نـۀ وي خـرېلے شـوے) د کنځل يا د تنبيه په طور وائي ـ

**ــــ خوړول**:ـاصل پنګه ضائع کول ـوژل ـ قتلول ـ

**ــــ خوړېدل**:ـ (۱) اصل پنګه ضائع کول ـ (۲) وژلے کېدل ـ قتلېدل ـ

**ــــ خوړل**:ـوژلے کېدل ـ

**ــــ خوځول**:ـ د سر په خوزولو څۀ اشارته کول ـ(۱) انکار کول ـ (۲) پښېماني ښکاره کول ـ (۳) نا خوښي ښکاره کول ـ (۴) په مات زړۀ کا کول ـ

**ــــ خوځول**:ـ(۱) سر ښکته پورته (عمومي) کول ـمنل ـ قبلول ـ (۲) وعده کول ـ

**ــــ خوږول**:ـ (۱) ډېرې زياتې خبرې کول (پـه ډېـرو خبـرو د چا پـه سر کښـې ډرد پيدا کول (۲) په څۀ کار کښې ډېر زيات مشقت او خواري کول ـ

**ــــ خوږېدل**:ـ په سر باندې درد راتلل ـ سر درد کېدل ـ

**ــــ خيرنېدل**:ـ (دښځو محاوره ده) د حيض ورځې کېدل ـزړوکي کېدل ـ

**ــــ د پاسه سر (نشته)**:ـ د يو طاقت ور د پاسه ـ د هغۀ نه زيات طقتور (شته) ـ

**ــــ د پښې لاندې کول**:ـمغلوب او په قبضه کښې ساتل ـ

**ــــ د خېټې خاورول**:ـ په خوراک سر داؤ کول ـ ډېـر زيات خوراک کـول ـ دا غـم يـا وېره نۀ لرل ـ چې په ډېر خوراک ناروغه يا مړ شم ـ

**ــــ درګم**:ـپرېشان ـ حېران ـ

کار د بل حکم دے چې څۀ کاندې هغه کاندې

واړه سـر درګـــــم دي د ادبــــاء دا امعـات (خوشحال)

**ــــ درنول**:ـ (ق)(۱) د تلې يوه پله په بلې درنه کېدل ـ (۲) يو څيز لـه پـه بـل څيز غوره والے ورکول ـ

**ــــ د سلامت وي**:ـ (محاوره) چې بني ادم ژوندے وي نو ډېر خواهشونه بـه پوره کړې يـا چـې سـړے پـه ژونـد ژونـدے وي نـو تکليفـو نـه او مصـيبتونه تېرېدوني ځيزونه دي ـ تېر به شي ـ ښۀ وخت به هم راشي ـ

**ــــ د کاڼي لاندې کول**:ـ (۱) وژل ـ مړ کول ـ چې اوبو تـه وائـي پـاڼې سر ئـې لاندې کړه د کاڼي ـ (متل)(۲) د وژلو د پاره د چا سر تر غټ کاڼي لاندې کول ـ چې اجل ئې نۀ وي راغلے سر ئې د کاڼي لاندې کړه نۀ مري (متل)

**ــــ د لحد شازه وهل**:ـ (ق) د چا سر د لحد په کاڼي وهلے کېدل ـکنايه: مړ کېدل ـ په سودا کښې جګړه کول او خر کښې په لړ قيمت رضا کېدل

**ــــ د مځکې مځکې وهل**:ـ (ق) سر پـه زمکـه زمکـه وهـل ـ کنايـه: ډېر ارمـان او افسوس کول ـ

**ــــ د مولي**:ـ:هېڅ شے ـ ناڅيزه ـ وائي: تۀ د مولي سر ئې که کونه.

**ــــ د وخرئيلے سه**:ـ ښېره ده ـ بدنامه شې ـ تومتي شې ـ

**ــــ دې وخوري**:ـ د ښېرې جمله ده ـ د څۀ کار يا څيز نه د وېزرې ځرګندولو په موقع وئيلے شي ـ پرې زده ، بلا پرې کړه ورک شي ـ

سړے ښه دے حق شناس

سر دې وخـوري ناسپاس (خوشال)

**ــــ راښکل (راکښل)**:ـ (۱) د بل د خبرې تائيد کول ـ (۲) په سندره کښـې د ټپـې د مصرعې وئيلو کښې نورو سره شريکېدل ـ

**ــــ راوړل**:ـ (ق) (۱) خوند لرل ـ(۲) لوې خدمت کول ـ(۳) مېړانه کول ـ

**ــــ راوړل**:ـ څۀ غوره والے يا فضيلت روړل ـ لکه : تا څۀ سر راوړے دے چې مديريت دعویٰ کوې ـ (په پښتنو کښـې يو رواج ؤ ـ هر چا بـه د دښمن سر راوړو نو هغه ته به انعام او شاباسے ورکولے کېدۀ) ـ

**ــــ زړوکي /کول**:ـ سر وينځل او جامې بدلول ـ ځان جوړول ـ ځان اراسته کول ـ

**ــــ سامان نۀ لرل**:ـ هېڅ نخښنه پته نۀ لګرل ـ

**ــــ سپينول**:ـ د سر وېښتۀ سپينول ـ زړېدل زوړ عمر ته رسېدل ـ

**ــــ سته کول**:ـ (وــــ سر زړوکي کول)

**ــــ سر تورول**:ـ (۱) د ښېرے کول په موقع سر نه پټکے يا لوپټه لرې کول ـ چې دا ښېره قبوله شي ـ(۲) منت زاري کول ـ معافي غوښتل ـ

**ــــ سر کول**:ـ کېلول ـ

**ــــ سره خوړل**:ـ (ق) (۱) مطابقت کول ـ يو شان والے يا د بطلرل ـ سمون خوړل ـ د څۀ کار ممکن ګرځېدل ـ

**ــــ سُنت کول**:ـسر خرئېل او د برېتو سنت اخستل ـ حجامت کول ـ

**ــــ شورول**:ـ سر خوځول ـ

د جاهل په بخره تش سر شورول دي

آفــــرين مې پـه خبرو دانشمند کړ (خوشحال)

**ــــ شيندل**/شندل:ـ سر قربانول ـ

چې په يوه دېدن ئې شيندۀ سر نازولو زلمو

د هغو جونو جمال حسن سنګار پاتې نه شو (حافظ)

**ــــ پښې کول** (په چا):ـ اني بانې کول ـ

**ــــ ښکاره کول**:ـ راز ښکاره کول ـپټه خبره ځرګندول ـ

**ــــ ښکته**:ـزوړند سر ـ نګون سر ـ شرمنده ـ

**ــــ ښکته اچوې**:ـکنايه:شرمنده کېدل ـ نادمه کېدل ـوچوکے ماتول ـ

**ــــ ښکته (کښته) کول**:ـ (ور ـ در ـ راسره استعمال)(ق) (۱) شرمنده کول ـ شرمه ول (۲) د ښځې د چا په خاوند کولو رضا کېدل ـ (۳) د سـړي د چـا پـــه ماتحتي يا قرابت رضا کېدل ـ

**ـــ ښکته نیول**:- (۱) سر زوړوندول ـ ښکته کتل ـ شرمنده کېدل ـ ملامته کېدل (۲) پښېمانه کېدل ـ

**ـــ ښندل**:سر قربانول ـ

زۀ خواجه محمد هر ګوره درغژن یم
چې د یار په مینه سر ښندلے نۀ شم

**ـــ ښورول**:- (۱) سر خوزول ـ عموماً د سر پورته ښکته خوځولو په معنٰی کښې راځي یعني هو وئیل ـ منل ـ قبلول ـ وعده کول ـ (۲) خوسرېنې اوګینې طرف ته هم ښورولے کېدے شي ـ په دې صورت کښې ئې سخې/ ښځې په بل رنګ شي یعني ـ انکار کول ـ ناکول ـ نۀ منل ـ نۀ قبلول ـ (په دې معنٰی کښې عموماً سر څنډل وائي ـ (۳) برابرې کول ـ سیالي کول ـ مال زور یا په مرتبه برابرے کول ـ (ا ـ ق)

**ـــ ښیندل/ شندل**:- سر قربانول ـ سر ځارول ـ

د ښېلتون له ویره ژاړم اوښکې وینې
زۀ اکبر پـه خپل اشنا د سر شندل کړم (اکبر زمینداور)

**ـــ غرۀ ته نیول**:- (ق) په څۀ خبره ټینګېدل ـ ضد کول ـ مصر کېدل ـ

**ـــ غړل**:- (مص تر) سر غړول ـ باغي کېدل ـ بغاوت کول ـ حکم نۀ منل ـ

**ـــ غړونګ**:- (غ+ړ+و+ن) (حمص) (۱) حکم نۀ منل ـ نافرمانه کېدل ـ (۲) باغي کېدنه ـ بخاوت کول ـ

**ـــ غړونے**:- (غ+ړ+و+نے) (اس ـ فا ـ ج ـ نې) سر غړوونکے ـ نافرمان ـ

**ـــ غړوونکے**:- (غ+ړ+وو+ن+کے) (اس فا ـ مذ ـ ج ـ کي) (۱) نافرمانه ـ حکم نۀ منونکے ـ (۲) باغي ـ بغاوت کوونکے ـ

**ـــ فدا کول**:- سر قربانول ـ د سر قرباني ورکول ـ د څۀ مقصد یا د چا د پاره ژوند قربونول ـ

**ـــ قربانول**:- سر فدا کول ـ د سر قرباني ورکول ـ د څۀ مقصد یا د چا د پاره خپل ژوند قربانول ـ

**ـــ کد ورکول (چاته)**:- ډېر زیات نصیحت کول ـ ډېر زیات پوهول ـ سر نغرے کول

**ـــ کشاده**:- (کُ+شا+د) (ف ـ صف) سر پرانستے چې سر ئې تړلے شوے پابند شوے نه وي ـ لکه شر کشاده مکتوب ـ

**ـــ کښته/ ښکته کول**:- (۱) سرکوز زوړوندول ـ شرمنده کېدل ـ خجل کېدل (۲) (دچا) شرمول ـ شرمنده کول ـ (۳) (د ښځو په حقله) د ښځې په دې رضا کېدل د کوم سړي سره په وادۀ رضا ښکاره کول ـ لکه :فلانۍ په فلاني سړي سر نۀ کښته کوي ـ

**ـــ کښته کېدل**:- (وـــ سر ټیټیدل)

**ـــ کونه**:- (کُ+ن) د څۀ ځیز یا خبرې او سر او اخر سر ـ د څۀ ځیز شورو او انجام ـ

**ـــ ګنوه لرل**:-(وـــ سر پېښې نۀ لرل)

**ـــ کوز (دے)**:- سر ټیټ دے ـ د احترام په توګه سر ښکته دے ـ

وهغه ته مې سر کوز دے چې معلوم ورته رموز دے
پــــه خبـره نه پــــــوهېږي، خرخو هسې وي که نه (خوشحال)

**ـــ کوزول**:- (وـــ سر ښکته کول)

**ـــ کوزے**:- ټیټ سرے ـ هغه کس چې سر ئې (چاته) ټیټ وي ـ

ودروېش وته سرکوزے بادشاه نۀ دے
د آسمان ورمین لاهم دے ورتـــه خم (خوشحال)

**ـــ کول**:- (۱) شروع کول ـ شورو کول ـ اغاز کول ـ ل (۲) نخښه خطا کول ـ (۳) (دچلمیانو اصطلاح) ـ د چیلم پـه ځکلو شورو کـول ـ اول کش را ښکل لکه:چیلم ته اول سر کړه ـ (۴) د ښځو پـه اصطلاح کښـې سر وینځل او بیا ګمنزول او کمڅی کول ـ (۵) دوکه ورکول ـ (ق) (۶) د لیکونکــو پـــه اصطلاح کښې قلم تراشل او جوړول ـ (ق) (۷) نښه یا ټکي خطا کول (ق) (۸) ټوپک یا تماچه چکه ول ـ نړ کول ـ (۹) ګټل ـ ویشتل ـ لکه :ماښـان سر کړ ـ (۱۰) په ښۀ لاره یا ځاے کښې په تللو مجبورول ـ

زۀ خوشحال د آهو چشمو میني سر کړم
د غـرڅۀ غونډې به هسې ګړنګونه هم

**ـــ کېدل**:- (۱) کوم ځاے ته تلل او هلته ګرځېدل لکه چې ځنګلونو سر شۀ ـ اخته ـ مبتلا ـ لګیا ـ

یـــار زمـــا کـره دننه
زۀ ئې سر یم په غوښتنه (خوشحال)

(۲) مراد تر سره کېدل ـ (۳) د چیلم خورو په اصطلاح کښې د چیلم پـه ځښکلو شورو (شروع) کېدل ـ(ق) (۴) په اول نمبر کښې راتلل ـ (ق) (۵) شورو کېدل ـ بیانول ـ

مخامخ دې په ثنا صفت سر شي
سل بله در پسې وائي شي دستا (خوشحال)

(۶) د چا د خبرې څۀ راز معلومول مراد پوره کېدل ـ (ق) د ټوپک تماچې چلېدل ـ

**ـــ کېدل** (په چا):- د چا په سر پرېوتل ـ په چا اثر کول ـ

**ـــ کېدل** (چاپېـ):- مصر کېدل ـ اصرار کول ـ

زړۀ راپسې سر شه راته وائي چې وئېږه (خوشحال)

**ـــ کښېښودل**/کېښل/اوښودل:-(۱) شرو (شروع) کول ـ اغاز کول (۲) غاړه کښېښودل ـ اماده کېدل ـ

**ـــ کښېښودل**(دچاوړاندې):- سر ټیټول ـ ماتے منل ـ

چې رښتینے تر سر تېز بخیل خوړل کا
د هـــغۀ د وړانـدې ســر کېږدي انام (خوشحال)

**ـــ ګرځول**:- (۱) سر چورلول ـ سر ګرداني راوستل ـ (۲) په ډېرو خبرو تنګول ـ مازغۀ (ماغزه) خوړل ـ (۳) سر خوږول ـ لکه تۀ سر په مه ګرځوه ـ

**ـــ ګرځول** (په چا):- (۱) ډېر زیات تنګول ـ (۲) ډېرې زیاتې خبرې کول ـ

**ـــ ګرځېدل**:- محسوسول لکـه سرئې ګرځي پـه سترګو تیئـره راتلل ـ سر چورلېدل ـ (په چا)

**ـــ ګرول**:- (۱)مجازاً ـ سوچ کول ـ فکر کول ـ ماما چې سرګروي نو د خورئي ترې طمع پیدا شي ـ (متـل)(۲) تـوطي معنٰی ښکاره دي ـ (۳) ډېر معمولي او ضروري کار کول ـ محاوره ده ـ سر ګرولو ته هم نۀ یم اوزګار ـ

**ـــ ګرولو ته اوزګار نۀ "بودل"**:- د کار د زیاتولو د اظهار د پاره وئیلے شي ـ ډېر نا اوزګار "بودل" ـ

**ـــ ګردانول**:- سر ګرځول ـ پرېشانه کول او تر کول ـ (ګردانول ، دے ، سره راځي)

**ـــ ګېرول**:- په قابو کښې راوستل ـ په څۀ کار کښې ښېلول ـ

**ـــ لګول**:- د مېوو د کرېټ د مېوې نه ډلولو نه پس بره سر کښې ښکلې پخې او غټې غټې دانې ترتیب سره کښېښودل ـ

**ـــ له**:اغازلـه ـــ شروع ـــ لکه سر لـه دے شمارغ څخه ـ یا سر لـه څۀ مودې(څخه)(ر ـ ق)

**ـــ له تنه کښېښودل**:- سر له تنه جدا کول ـ سر پرې کول ـ

زه چې خپل قدم د عشق په خـــونې راه بردم
هـــــــــ زمـــان له تنه سر لـکه ګیاه بردم (خوشحال)

**ـــ له خوبه پورته کول**:- وېښېدل ـ له خوبه بېدارېدل ـ

**ـــ له سره**:- (۱) د نوي سره ـ سر دوباره (ق) (۲) سر تر سره ـ ټوله ـ

راشه مه کړه په دنیا تۀ اعتماد
د ادنـیا ده سر له سره بې بنیاد (خوشحال)

ـــــ **لالارے:**- (ق)دوباره ـ غرم لرونکے ـ
ـــــ **له نوے:**ـ(پ تر)د نوي سر نه ـ بیا ـ له سره ـ
ـــــ **ماتول:**ـ(۱) سر ټوټې کول ـمجازاً د څۀ څيز بې کچه ډېر مشتاقه "بودل" ـ د څۀ څيز د پاره جنګ جګړه ته تيارېدل ـ (۲) په تول کښې چالـه څۀ قدرې زيات تلل (ق) خوارۀ تلل ـ (۳) په سر سخت زخمي کول ـ
ـــــ **ماتے:**ـ (ما+تے) دا لفظونه عموماً غابښ ماتے ـ سره يو ځاے راځي ـ يعني غابښ ماتے سرماتے جنګ جګړه (چې پکښې د چا غابښ مات شي د چا سر زخمي شي)
ـــــ **ماتېدل:**ـ(۱) په سر کښې ډېر زيات درد کېدل (۲) په سر ډېر زيات زخمي کېدل
ـــــ **مخ پټول/نغښتل:**ـ په څادر وغېره کښې خپل سر او مخ هر څۀ پټول ـ
ـــــ **منډول:**ـ (م+ن+ډو+ل)(اس مذ) په سر اودرېدل ـ
ـــــ **مواس ګڼل:**ـ خپل سر چغلي خور ګڼل ـ
ـــــ **(مې) حاضردے:**ـ (محاوره) د سر د قربانئ نه دريغ هم نۀ کوم سر هم درنه نۀ ژغورم ـ سر ورکولو ته هم تيار يم ـ
ـــــ**مې مه خوره:**ـ هغه کس ته وئيلے شي څوک چې د خپل مطلب د حصول د پاره ډېرې خبرې يا بحث کوي ـ مازغۀ ماغزۀ مې مه خوره ـ
ـــــ **نغرے کول (چاته):**ـ څوک ډېر زيات پوهول ـ ډېر زيات نصيحتونه کول (چاته) د څۀ خبرې په حقله ډېر زيات بحث مباحثه کول ـ(په داسې موقع وئيلے شي چې د دومره سر خوږي په بل باندې اثر ونۀ شي ـ
ـــــ **نۀ پرې کول د پېسې:**ـ بې حده شوم سړي په حقله وائي چې د پېسې سر نۀ پرې کوي ـ
ـــــ **په خلاصېدل:**ـ (ق) (وـــ سره نۀ رسېدل)
ـــــ **نۀ په رسېدل:**ـ د خبرې په مطلب نۀ پوهېدل ـ په خبره نۀ رسېدل ـ لکه :سر دې زما به خبره او نۀ رسېدۀ ـ
ـــــ **نۀ په ګرځول:**ـ (۱) د چاپه بحث کښې دخل نۀ ورکول ـ (۲) د کوم سړي يا څيز يا د کار په حقله سترګې پټول يا اغماض کول ـلکه: فلانے په کار سر نۀ ګرځوي ـ (يعني د کار نه ځان بچ کوي او نه کوي)
ـــــ **نۀ خوږېدل او داغ پرې کښېښودل:**ـ دا جمله د مشهور متل نه اخستې شوې ده چې "سر دې نۀ خوري داغ پرې مه ږده" ـ مطلب دا چې بې ضرورته او بې موجبه په څۀ کار کښې دخل ورکول نۀ ښائي ـ
ـــــ **نه سر رسېدل:**ـ (ق)(وـــ سر نه سره ورتلل)
ـــــ **نه سره ورتلل:**ـ ربط نۀ جوړېدل ـ سمون نۀ خوړل ـ كار سر ته نۀ رسېدل ـلكه ددې كار سر نه سره ورځي ـ
ـــــ **نۀ نيول:**ـ (ق) كنايه :نۀ راضي كېدل ـ يا د يوكار نا ممكن كېدل ـ
ـــــ **نيول:**ـ(۱) مقابله كول(۲) مطابقت راوستل (۳) چې څۀ كار كښې رونق پيدا كېدل
ـــــ **نيول په:**ـ شورو كېدل ـ

په اختر په جمعه څۀ غرض زما
زۀ مجنون يم سرنيولے په صحرا (خوشحال)

ـــــ **وبن:**ـ سر او بنياد ـ يعني ټول ـ مكمل ـ پوره ـ
ـــــ **وبا:**ـد ټول وجود جامې ـ پوره جامې ـ

د سر وبا خصمانه اوس وكه چې ځان وساتې
بيـا پـه څـله د جدائۍ كښې به سارۀ راشې (حافظ)

ـــــ **وتېرکېدل:**ـ سر اوغشتے کېدل ـوژلے کېدل ـمړ کېدل ـ

چې نا قابل دې هغه زوپه پابنده شه!
نـــاقـابل د لاهلک شي سر ورتېر (خوشحال)

ـــــ **وجدل/وهل:**ـ پوره پوره كوښښ كول ـ حتى الوسيع كوښښ او سعي كول ـخپل وس كول ـ لكه :زۀ به سر وجدل ووهم كه مې دومره روپۍ پيدا كړې
ـــــ **وخوري/ته مړ شې:**ـ د ښېرې جمله ده ـخو د تنبيه او قهر په موقع وئيلے شي
ـــــ **ورته كښته كول:**ـ (وـــ سر ټيټول)
ـــــ **وركول:**ـسر قربانول ـځان قربانول ـ
ـــــ **وركول (په څۀ په چا):**ـ(۱) د سر قربانۍ ته تيار "بودل" ـ (۲) څۀ څيز ډېر زيات خوښ "بودل" ـ
ـــــ **وكړ كې كېدل:**ـ سر اوچارۀ كېدل ـ ډېر سخت دښمن كېدل ـ
ـــــ **وهل:**ـ(۱) د سپوږمۍ څوكه يا سر رابنكاره كېدل ـد سپوږمۍ ايله راختل ـ ايله راختل ـ(۲) د بوټي تيغه راوتل ـ (۳) لټول ـ تلاش كول(ق)(۴) برابرے كول ـبرابرېدل ـ (۵) (په دواړه لاس) ډېره زياته پښېماني كول ـارمان كول ـ ډېر افسوس كول ـ(۶) سر پرې كول وژل ـ قتلول ـ سر له تنه جدا كول ـ

څـود ملک وارث ونۀ وهي سرونه
هومره چېرې قرارېږي سمې غرونه (خوشحال)

ـــــ **وهل:**ـ (په مصله يا مصلې)سر له په مصله ټكرې وركول ـ

لكيور دستار په سر كړه
ســـــر وهه په مصلې (خوشحال)

ـــــ **وهلے بر وهلے:**ـ په بده ورځ ـ حېران پرېشان ـ
ـــــ **وهلے ګرځېدل:**ـ حېران پرېشان ګرځېدل ـ

حېران ګـرځي سر وهلے
كوئي پـــه كوئي،در په در (رحمان)

ـــــ **وينځل (دچا):**ـ د چا صفائي كول ـ د چا بد عمل پټه ولو د پاره د هغۀ صفائي كول ـ
ـــــ **يو او سل سودا:**ـ يو كس او ورسره سل رنګه فكرونه او غمونه ـ

ښه ئې دې ويلي چې زړۀ يو دې يار د يو وي
ښه ده دا خبـــره چې سل يو او سودا سل څۀ (خوشحال)

ـــــ**ئې وخوړ:**ـ (۱) سر ئې (په څۀ كار كښې) بيلود ووژلے شۀ ـ(۲) محـاوره ـ پـرې ئې ږده بلا وريسې كه ـ
**اسمان په ـــــ اخستل:**ـ ډېر شور زوږ كول ـ
**اوبۀ ـــــ اوړېدل:**ـ خبره د برداشت نۀ وتې ده ـ معامله د حد نه اوړېدلې ده
**اوبۀ ـــــ له راغلي دي:**ـ معامله اخري حد تـه رسېدلې ده ـاوس خبره د زغملو نه وتې ده ـ اوس نور برداشت نشي كېدے ـ
**پر ـــــ اخستل:**ـ(۱) په خپله ذمه اخستل ـ (۲) د بل چا كفيل كېدل ـ(ق)
**پر ـــــ اوبۀ تېرول:**ـ غسل كول ـلاتبل ـ په سر اوبۀ اړول ـ
**پر ـــــ تمامېدل:**ـ (ق) په يوازې ځان څۀ كار يا د يو خاندان د خرڅ ذمه وار كېدل
**پر ـــــ خاورې بارول:**ـ (ق) په سر خاورې اچول ډېر افسوس كول ـ
**پـر ـــــ خـوړل:**ـ (ق)پـه خپلـه تجربـه كښې راتلل ـ څۀ تكليف يـا مشقت پـه سر تېرېدل ـ
**پـر ـــــ لاس ورتېـرول:**ـ (ق) پـه سـر لاس وهـل يـا كښېښـودل د چا مظلوم طبع تسلي كول ـ د لاسه وركول ـترس او رحم پر كول ـ
**پښو ـــــ په:**ـ (۱) داسې ناسته چې تشې پښې پـه زمكه لګېدلې وي ـ(۲) لنډ ګند ملاقات ـ
**په ـــــ خپل** :ـ (۱) په خپل ځان په خپل كوښښه ـ په خپلو متو ـ (بغېر د بل چا د امداد نه)(۲) په خپله ذمه وارۍ ـ
**په ـــــ خپل ځان ګالل:**ـ (ق) په خپل مټ په خپل ځان ساتنه كول ـ
**په ـــــ:**ـ(۱) د چا خلاف ـ لكه ستا په سر ئې راته شكايت كړے دے (۲) پـه ذمه ـ په ذمه دارۍ كښې ـ

**په ـــ اخستل**:- (۱) په خپله ذمه اخستل - ذمه داري قبلول لکه :پر دي غمونه مې په سر اخستي دي - (۲) ډېر شور زوږ کول - عموماً اسمان يا ملک سره راځي لکه اسمان په سر اخستل يا ر ملک په سر اخستل

**په ـــ اري ختل**:- سخت تکليف يا مصيبت راتلل -

**په ـــ اړول**:- (ا-ق) ځښکل - راښکل -

**په ـــ اودرېدل**:- د څهٔ څيز يا د کار مطالبې د پاره ضد کول - بې د دغې مقصد د پوره کولو نه بېرته نهٔ تلل -

**په ـــ اوربلېدل**:- څهٔ مجبوري "بودل" په سرهاتي پېښه کښېښودل - لکــه :زما په سر څهٔ اور بلېږي -

**په ـــ باربدل**:-(۱) ذمه واري په سر راتلل -(۲) په سر بوج راتلل -

**په ـــ سر بوس نوستل**:- فضول او عبث کار کول -

نهٔ ئې مغز نهٔ دانه وي په خرمن کښې
عبث هسې واړه نولـــي پـــه سر بوس (رحمان)

**په ـــ پتل (دچا)**:- (۱) دچا په ذمه کول -(۲) په چا الزام لګول -(۳) (څهٔ بد کار) چاته منسوب کول -(ځينې وخت "دغل" وغېره لفظ هم راوستے شي - کنايه:الزام - تومت وغېره -

**په ـــ کټوي ماتول**:- ډېر ذليل کول - رسوا کول - شرمول -

**په ـــ څوک نهٔ لرل**:- (۱) سرپرست - مشر - محافظ يا مرسته کوونکے نهٔ لرل (۲) نګراني کوونکے نهٔ لرل - انار "بودل"-

**په ـــ خاورې اچول/لوستل**:- ډېر زيات ماتم کول - افسوس ارمان لر ل-

**په ـــ خاورې انبار بدل**:په قبس کښې ښخېدل - مړکېدل -

**په ـــ ختل**:-(۱) بې باکه کېدل - بې وېرې کېدل -

**په ـــ ختل د چا**:- بې لحاظه کېدل - نيازبينه کېدل -

**په ـــ خېژول**:- د ډېره زياتې نرمۍ او نازبرداري په وجه ضدي او ګستاخه کول

**په ـــ داوښ انبار پروت دے**:- مجبور دے -

**په ـــ دريګ**:- په شګه باندې - د شګو د پاسه -

**په ـــ ډال نيول**:- حفاظت کول - دښمن د وار نه بچ کول -

**په ـــ راتلل**:-(۱) نزدې راتلل - رارسېدل - (لکه:روژې په سر راغلې) (۲) عموماً نور ، نمر په حقله وئيلے شي - چې نمر په سر راغے - يعني غرمه شو - نا وخته شهٔ

**په ـــ رسول**:-(ق) سر ته رسول - انجام ته رسول - پوره کول -

**په ـــ روپۍ منل**:- د چا ګرفتار کول - يا مړکول - د پاره انعام مقرر کول -

**په ـــ سترګو**:- په خوشحالۍ (منم) په دواړو سترګو (په کوم)

**په ـــ سترګو کښېښودل**:- ډېر عزت او احترام کول -

**په ـــ سوربدل**:- (۱) په چا باندې حاوي کېدل - مسلّط کېدل - (۲) هر وخت موجود اوسېدل -

**په ـــ سوګندول**:- د چا په سر قسم خوړل -

مبتـــلا خاطر ئې مري د يار له لاسه
بـيا له مينې هم د يار په سر سوګند کا (خوشحال)

**پهـــ شيطان سوربدل**:- (۱) ډېر زيـات پـه قهر کښې کېـدل - (۲) څهٔ بد کار تـه اماده کېدل -

**په ـــ ښکر "بودل"**:- څهٔ خاص نخښهٔ لرل - د کم عقل په سر ښکر وي څهٔ -(متل)

**په ـــ غررا پربوتل**:- (۱) ناڅاپه يو لوے مصيبت د وځاره کېدل - (۲) لويـــه ذمه داري په سر راتلل -

**په ـــ قسم کول**:- د چا په سر قسم خوړل - يعني ستا په سر (يعني په ژوند) مې دې قسم وي -

درپوهېږم چې مې سروته په څويې
که هزار ځله زما په سر قسم کړې (خوشحال)

**په ـــ کښې سپين پيدا کېدل**:- د بوډا والي شورو کېدل - زوړ يا پوخ عمر ته رسېدل

**په ـــ کښې سودا "بودل"**:- پـه سر کښـې د څهٔ خاص کـار کولـو وغېـره خـواهش "بودل" په سر کښې خبط "بودل"

**په ـــ کښې شته**:- په زړهٔ کښې څهٔ لري -

چــې دا هسې بې پيرے کړلے بنيادې
د فلک په سر کښې شته څهٔ شور وشر (خوشحال)

**په ـــ کښې لوئې "بودل"**:- په سر کښې غرور "بودل" متکبره مغروره "بودل"

**په ـــ کښې مسواک ګرځول**:- ډېر زاهد او پرهېز ګاري ځرګندول - ريا کاري کول

**په ـــ کښېناستل**:- په وخت موجود "بودل"-

**پـه ـــ کفن تـړل**:- د مرګ د پـاره امـاده کېـدل - د څهٔ مقصد حاصلولو د پـاره خپل ځان په مرګ شمېرل - د سر قرباني ته تيارېدل -

**په ـــ کنه نه پوهېدل**:- پـه اغـاز و انجـام تـه پوهېدل د څهٔ څيـز پـه حقلـه هېڅ نهٔ پوهېدل -

**په ـــ کول**:- په سرول - ټوپۍ - پټکے - څادر وغېره په سر کښېښودل يا اچول -

**په ـــ ګرځول**:- ډېر زيات قدر کول -

**په ـــ لاس کښېښودل**:- سرپرستي قبلول - اعانت او طرفداري کول -

**په ـــ لاس وهل**:- د لاسه کول :تسله ورکول -

**په ـــ لوبې کول**:- سر بازي کول - د څهٔ مقصد د حاصلولو د پاره د سر قرباني ته تيارېدل -

**په ـــ لوپټه اچول**:- عزت ورکول - درنول - د امداد او مرستې وعده کول-

**په ـــ ماتېدل**:عموماً تکبر يا د لوئۍ په حقله وئيلے شي - چې لوئي ئې پـه سر ماته شوه - يعني د لوئۍ يا غرور له کبله رسوا او ذليل شهٔ -

**په ـــ مېچن ګرځول**:- په سخت تکليف مصيبت کښې اچول -

**په ـــ هاتي پېښه کښېښودل**:- په سر اور بلېدل - ضروري يا ناکام "بودل" د څهٔ کار په کولو مجبوره کېدل -

**په ـــ په سر وسره ختل**:-(ق) د يو بـل پـه سر ختـل - يعنـي ډېـره زياتـه ګڼـه ګوڼـه "بودل" ډېر لوے از د حام "بودل"

**په ـــ صحرا کېدل**:-(۱) پـه صحرا کښـې ځـاے پـه ځـاے ګرځېـدل - (۲) لېـونے کېدل -

**په کرښه ـــ کښېښودل**:- لکه د مار دم يا جادو منل - مطيع کېدل -

**په ـــ ئې در کول**:- يعني د يو نيم سبر جنس (اوړهٔ غنم جوار وغېره) پـه بدلـه کښې يو سبر (پياز ياسبزي) درکول - پـه کلو بانډو کښې بـه پخوا سبزي ترکاري سودا ګرو ګرځوله او د پېسو په ځاے به ئې جنس د غنم اوربشې وغېره) هم اخستهٔ -

**پېټے ـــ** (د ګناهونو)په سر وړل:- د مړکېدو پـه وخت د ډېرو ګناهونو بـار ځان سره قبر ته وړل -

**تر ـــ پټرول**:- په څهٔ کار کښې سستي کول - د څهٔ کار خيال نهٔ لرل -

**تر ـــ رسېدل**:- پوره کېدل :انجام ته رسېل -

هغه کار چې تر سر ورسېږي بخت دے
چــــې په زړهٔ ګرځي په وينبه په منام (خوشحال)

**تر ـــ صدقه کول**:- د سر نه قربانول -

که تر سر ئې صدقه کړې
رفــــع دفــــع کـــا بلا! (رحمان)

**تر ـــ کېدل**:- سر ته رسېدل - پوره کېدل - کامياببدل -

که مې سل هنره کړل تر سره نهٔ شول (خوشحال)

**د پښتو په ـــ**:-(۱) داسې ناسته چې تشې پښې پـه زمکـه لګېدلې وي (۲) لنډ ملاقات - (ق)

**د پښو وينې ـــ ته ختل**:۔(۱) سخت محنت مشقت کول۔(۲) په لوی تکليف کښې او عذاب کښې کښنوتل (عموماً داسې وائي چې د پښو وينې ئې سر ته وختې او سر وينې ئې پښو ته لاړې)

**د پسې ـــ نه پرېکول**:۔ ډېر زيات شوم "بودل"۔

**د خبرې ـــ**:۔ د خبرې شورو (شروع) د خبرې اغاز۔

**د خبرې ته يا په ـــ رسېدل**:۔ د خبرې تل ته رسېدل۔د معاملې په اصل حقيقت پوهېدل۔

**د خبرې ـــ کښېښودل**:۔ خبره شورو کول۔د خبرې اغاز کول۔د خبرو شورو کولو د پاره څۀ بنياد کښېښودل۔

**درسي ـــ رانښکل ، چاسره**:۔ چاسره گزاره کول۔داسې سر دې راکاږم به ورسره

**دړې ـــ خوزوې چيټاکې ژبه نۀ خوځوې**:۔ د هغې سرې په حقله وئيلے شي چې څوک د څۀ خبرې جواب د سر په خوځولو ورکړي (چې سبهمه اشاره وي) نو ورته وائي چې په ژبه صفا خبره اوکړه۔(دا متل په بدلو الفاظو کښې هم راغلے دے) لکه من سل۔منه سر خوځوې او چيټاکې يا دوه گوتې ژبه نۀ کوزوې)۔

**د ـــ**:۔ (و ـــ په سر)

**د ـــ امن**:۔ عموماً د څۀ سختې خبرې کولو په وخت باچاهانو ته وئيلے کېدل۔ چې که په دې خبره ما قتلوې نه نو زۀ به دا خبره وکړم۔لکه: کـه زما د سر امن وي نو۔

**د ـــ بار پښو له راځي**:۔ محاوره۔د قرض وغېره ذمه دارې په اولاد اولاد راځي۔

**د ـــ بلا دے واخلم**:۔ له تا قربان شم۔صدقه شم۔(د ښځو محاوره ده)

**د ـــ بوج/بار/پيټے/لرې کول**:۔(۱) ذمه دارې د ځان نه لرې کول۔ (۲) څۀ کار سر ته رسول او ځان د ذمه وارۍ نه خلاصول۔ (۳) څۀ کار په بې دلۍ سره يا د بېگار په طور سرته رسول۔

**د ـــ پټولو ځائے**:۔ (۱) مجازاً کور۔کوټه۔(۲) د ځان د حفاظت ځائے۔

**د ـــ په کاسه کښې اوبۀ څښکل**:۔د ډېرې سختې دشمنۍ څرگندونه چې غواړي چې مړ ئې کړي او بيا ئې په کپرۍ کښې اوبۀ وڅښکي۔په کپرۍ کښې اوبۀ هم وائي۔

**د ـــ تربر ونيول**:۔ (ق)د سر وېښتو نه نيول۔کنايه:وهل او بې عزته کول۔

**د ـــ څېره**:۔ (ق)(ـــ(ت) سے+ړ)(اس۔مو۔ج۔ے) د جنگ په مېدان کښې اولنے صف۔

**د ـــ خطره دې د ځان ته د سر وېره**:۔ نقصان رسېدو خطره۔

هم خطره پکښې د سر شته
هم گـــــوهر دے بې بها (رحمان)

**د ـــ خولې پښو ته راتلل**:۔د ډېر زيات محنت او مشقت په حقله وئيلے شي۔

**د ـــ د پاسه سر شته**:۔يو سړے که ډېر لوے شي۔خو هغه د پاسه بل سړے د هغۀ نه هم لوړ موجود دے۔هر فرعون د پاره موسیٰ شته۔

**د ـــ سترگې**:۔ هغه سترگې چې په سر کښې لگېدلې وي۔د زړۀ د سترگو (بصيرت) په مقابله کښې وئيلے شي۔بصارت۔

**د ـــ سترگې/کسے خوړل**:۔کنايه :روند کېدل۔رندېدل۔

**د ـــ سره "بودل"**:۔ تر ژونده پورې "بودل" د څۀ کار يا څيز تعلق د چا ژوند سره "بودل" لکه:خو ستا تر سره پورې ده۔

**د ـــ سړے**:۔ سربراه۔مشر۔

**د ـــ سودا کول**:۔ په چا باندې خرڅول۔

چې په سر دې څوگند خورې،ورځنې ډار کړه
يـــــوه ورځ بـــــه ستا د سـر وکــا سودا (خوشحال)

**د ـــ سورے**:۔ خاوند۔څښتن۔"خداے دې د سر سورے لره۔د ښځو دعائيه جمله

**د ـــ سر سورے نۀ پاتې کېدل**:۔(۱) بې خاونده کېدل۔کُونډه کېدل۔ (۲) سرپرست نۀ پاتې کېدل۔

**د سرونو سودا**:۔ هغه سودا چې سرونه پکښې اخستے او خرڅولے شي۔يعنې مېدان جنگ کښې وژل او وژلے کېدل۔

**د ـــ صدقه شه**:۔ د څۀ څيز دورکېدو يا ضائع کېدو په موقع وئيلے شي۔چې غم ئې مه کوه د خپل سر صدقه ئې وگڼه۔

**د ـــ صدقه کول**:۔ د چا د ژوند يا صحت د پاره څۀ څيز د چا د سر نه تاوول او خېرات کول۔د چا د سر نه قربانول۔

**د ـــ قسم خوړل (دچا)**:۔ډېر لوے قسم خوړل۔

**د ـــ قسم نۀ خوړل**:۔(د ـه)ډېر زيات عزيز يا خوښ "بودل" چې د هغۀ د سر قسم خوړلو ته نۀ تيارېدل۔

**د ـــ کسے خوړل**:۔رندېدل۔روند کېدل۔

**د ـــ کوترې الوزول**:۔ (ق) کنايه:څوک په ډېر زيات زحمت او تکليف اچول۔په عذابول۔

**د ـــ گرولو ته نۀ اوزگارېدل**:۔ دومره په کار کښې بوخت "بودل" چې خپل سر ئې وگرځېږي۔نو گرولو ته ئې اوزگار نۀ وي۔ډېر زيات نا اوزگار "بودل"

**د ـــ گرولو ته نۀ خلاصېدل**:۔ (ق) (و ـــ سر گرولو ته نۀ اوزگارېدل)

**د ـــ گل**:۔ د ډېر قدر او عزت وړ۔

**د ـــ نه بار/بوج/پيټے غورځول**:۔(و ـــ د سر نه بار ـــ لرې کول)

**د ـــ نه بلا اړول**:۔(۱) د څۀ پېښې يا مصبت نه ځان خلاصول۔(۲) د ذمه وارۍ نه ځان خلاصول۔

**د ـــ نه تر پښو پورې**:۔(۱) ټول بدن۔درست وجود۔(۲) ټول۔تمامي۔همه۔د پورته سر نه تر ښکته سره پورې۔

**د ـــ نه دانگل**:۔د ځان پروا نۀ کول۔

**د ـــ وېره**:۔ د سر د غوڅېدو يا پرې کړے کېدو خطره۔د وژلے کېدلو وېره

د معشوقـــې په پالنگ به هغه خېژي
چـــې لـه سره نه بېرون کا د سر وېره (خوشحال)

**د ـــ وينې پښو له تلل او د پښو ئې سر ته**:۔ډېر قهرېدل۔ډېر په غصه کښې کېدل

**د کال په ـــ**:۔ د کال په شورو (شروع) کښې د کال په اغاز کښې۔

**د مياشتې په ـــ**:۔ د مياشتې په اغاز کښې۔د مياشتې په شورو کښې۔

**را ـــ کول**:۔ نقصان پوره کول۔کوم رقم وغېره چې ببللے وي۔هغه بيا گټل۔

**را ـــ کېدل**:۔(۱) ببللے رقم وغېره بيا گټل ، نقصان پوره کول (۲) شورو کېدل۔(په خبرو)

**ستا په ـــ چې**:۔ قسم دے۔يعنې ستا په سر مې د قسم وي۔چې ـــ۔

**سړې ـــ يا د سړې په**:۔ د هر سړې په سر۔چې يوه ډله کښې د هر يو فرد د پاره۔في کس۔

**سودا ـــ ته ختل**:۔سودائي کېدل۔فکرونه په مخه کول۔

**سهرا د چا په ـــ بودل**:۔ (د اردو د محاورې ترجمه شان ده) د څـــۀ غټـــې کارنامې يا د کاميابۍ په حقله شي۔چې ددې انحصار په دۀ باندې ؤ

**ښانک په ـــ نيول**:۔خپله برخه يا خېرات په اخستلو کښې تادي کول۔

لنډے حلال نه ښانک په سر نيولے۔(متل)

**قران په ـــ اوچتول**:۔د قرآن پاک قسم خوړل۔

**قران په ـــ ورتلل**:۔د قرآن روئې وروړل۔

**لاس په ـــ کېدل**:۔ د څۀ کار نه لاس اخيستل۔د څۀ مطالبې به دست بردار کېدل

**له ـــ وماله تېرېدل**:۔ د سر او مال قربانۍ ته تيارېدل۔

**يو ـــ دوه غوړونه**:۔ (۱) تش بدن۔ بغير د څۀ سازوسامانه۔ يوازې تن تنها۔ (۲) ډېر خوار۔ مفلس۔

**يو ـــ يم**:۔ يو کس يم۔ تن تنها يم۔ څوک ملګرے يا حصه دار وغيره مې نشته

**سر**:- (س+ر)(ق۔اس۔مذ)د واوړې وغيره يوه لويه ټوټه هغه واوره چې د پاسه پرې تګ کېدے شي۔ سرجه۔

**سر**:- (س+ر)(و۔ څر)

**سر**:- (س+ر)(ه۔اس۔مذ۔ج۔ونه)(۱) د ګنجفې يا د تاش په لوبه کښې هغه (درې يا څلور) پتے چې په يو وار وګټے شي۔(۲) هغه پته چې نورې پتې پرې ګټلے شي۔ ګټونيه پته۔

**ـــ اوړل**:۔ د تاش (يا د ګنجفې) په لوبه کښې په يو وار مېدن کښې اچولې شوې پتې ګټل۔

**ـــ ورکول**:۔د تاش (يا د ګنجفې) په لوبه کښې د کمې درجې پته اچول۔ چې مخالف دغه سر وګټي۔

**سر**:- (س+ر)(انګ۔حرف)(۱) د مشر يا افسر په مخاطب کولو په موقع وئيلے شي۔ جناب۔ (۲) د پېرنګيانو (د وخت) يو خطاب دے۔

**سِر**:- (س+ر)(ع۔اس۔نه۔ل سرونه۔ اسرار)راز۔ پټه خبره وغيره۔

**ـــ برڅېره کول**:۔پټه خبره څرګندول۔ ځان ښکاره کول۔

ځوانمرد به شي اهل مروت د محبانو مرعات

کــه سر بــرڅېره د اشنا، وبل اشنا ته نۀ کړې (حافظ)

**ـــ ساتل**:۔ راز پټ ساتل۔ راز افزا کول۔ پټ نۀ ښکاره کول۔

**ـــ فاش کول**:۔راز ښکاره کول۔پټه خبره څرګندول۔

هر چې خـــود پسند دے پردے عيب ورته ځرګند دے

خپل څېر به ئې خداے فاش کا چې د بل په اسرار بلـوسي

(حافظ)

**ـــ ويل**:۔ پټه خبره ښکاره کول۔راز وئيل۔

**ـــ سراً وجهْراً**:۔ (س+ر+ن+و+ج+ه+ر+ن)(ع۔صف) په پټه او په جهر (جار) په خفيه طور سره او په ښکاره يا اعلانيه۔

**سُر**:- (س+ُر)(ه۔مذ۔ج۔ونه)(۱) د موسيقۍ ماهرينو د اواز اووۀ درجې مقررې کړې دي۔ په دې کښې هر يو ته "سُر" وائي دا سُورونه دادي۔ سا، رے، ګا، ما، پا، دها، نې، (۲) اواز۔ تال۔(۳) د موسيقۍ د قاعدې مطابق اواز۔ (۴) د يوې سندرې د وئيلو يا غږولو طرز۔ (۵) شهنائي سره چې د غټ اواز چې کوم شان غږولے شي۔ هغه هم سُر بللے شي۔

**ـــ سُر برابرول**:۔(۱) د بل سندرغاړي اواز سره يا ساز سره خپل اواز سمول۔ (۲) د بل د خبرې تائيد کول۔

**ـــ برابرېدل**:۔ (۱) د يو سندر غاړي، بل سندر غاړي سره په سندره کښې اواز يو شان کېدل۔ (۲) د سندر غاړي د سندرې وئيلو اواز، ساز سره سمېدل

**ـــ سارجنګول/لګول**:۔ اټ سټ لګول۔ چاسره د مينې محبت تعلق پيدا کول۔

**ـــ سنګار**:۔ (س+ن+ګا+ر)(ه۔اس۔مذ) د يو قسم باجې (ساز) نوم۔

**ـــ کېدل**:۔ (۱) د تارونو واله ساز (رباب ستار وغيره) د تارونو په راښکلو سره صحيح اواز پيدا کول۔ (۲) د ډولکې يا د طبلې د مزو د راښکلو په وجه صحيح اواز ورکول۔

**ـــ ناک**:۔ سُر والا۔ د موسيقۍ په لحاظ سره صحيح او خوند ناک۔

**سُره ـــ بې غږېدل**:۔ بې موقعې خبره کول۔غلطې يا خطا خبرې کول۔ غېر موزون بحث يا خبرې کول۔

**سُر ـــ په سره**:۔ په خوږ اواز۔ د سندرې په دود۔

**ـــ په کښې**:۔ (۱) د موسيقۍ د دود قاعدې مطابق صحيح اواز يا ساز۔ (۲) په سرور کښې۔ په چرت کښې په ښۀ موډ کښې۔

**د ـــ علم**:۔ هغه علم چې د موسيقۍ سرونو سره تعلق لري۔

**ـــ**:۔ (س+ُر)(صف۔مذ)(۱) سُور۔ سور رنګے۔ (۲) په وينو ککړ۔

**ـــ لاس نيولے کېدل**:۔ عين د جرم په موقع نيولے کېدل۔د انګريزئ د محاورې To Be Crught Red Handed۔ ترجمه ده۔

لکه: په هغه غل چې سُر لاس ونيول شي بنده پر زړۀ سوځي۔

**سوا**:-(س+را)(غ۔اس۔مذ)د يوې ونې نوم دے۔ چې دلرګي نه ئې لينده جوړه ولے شي۔

**سوا**:-(سَ+را)(و ـــ څرا)

**ـــ**:-(سَ+را)(ف۔لاحقه)لاحقه ده د نورو الفاظو نه وروستو لګولے شي۔ (ودګانې (سندره وئيلو) معنٰی ورکوي۔ لکه نغمه سرا۔

**سراب**:- (س+را+ب)(ع۔مذ۔ج۔ونه)(۱) په صحرا کښې داسې شګوړې ځاے چې د نمر پلوشې پرې ووزي نو د لرې نه داسې ښکاري چې لکه اوبه وي۔شګوبے (۲) مجازاً دوکه۔ تېريستونکے څيز۔

**سراپ**:- (س+را+پ)(اس۔مذ۔ج۔ان)(۱) د صراف بدل شکل دے۔ هغه سړے چې د زرو کره کوټه پېژني۔ کره (کاکړ)(۲) هغه سړې چې د يو ملک سکه يا نوټونو د بل ملک سيکې(يا نوټونو) سره بدلوي۔

**سراپا**:- (س+را+پا) (ف تر۔اس۔مذ) د سرنه تر پښو پورې جامه۔ عموماً د خلعت د پاره وئيلے شي۔

**ـــ ورکول**:۔چاله خلعت ورکول۔ د سر نه تر پښنو پورې جامې ورکول۔

**سرپرده**:- (س+ر+پ+ر+د) (اس۔مو)(۱) هغه پرده چې په شاهي محل کښې يا بارګاه ته وړاندې لګېدلے وي۔ (۲) هغه قنات چې د تنبوانو ته چار چاپېره لګولے شي۔

**سراج**:- (س+را+ج)(ع۔مذ۔ج۔ان) زينونه جوړوونکے۔ زين ساز۔

**سِراج**:- (س+را+ج) (ع۔اس۔مذ۔ج۔ونه) (۱) ډيوه۔ چراغ۔ (۲) نمر۔ نور۔ نمير۔ (۳) د سړو نوم۔ يا د نوم برخه۔ لکه سراج الدوله۔

**ـــ سراجُ الليل**:۔ (و ـــ ج+ل+لي+ل)(ع تر۔مذ) د شـــپې ډيـــوه۔ مجـــازاً اور اورکے

**ـــ مُنير**:۔ روښانه ډيوه۔

مقتبس له مړي ډيوې څۀ رڼا يوسي

دغـــه کـــار بـــې له سراجِ منير نۀ شي (حافظ)

**سراچه**:- (س+را+چ)(ق۔اس۔مو۔ج۔سراچې)هغه دانه يا غوټه چې د انګورو په لرګي وي۔

**ـــ**:-(س+را+چ) (ف۔اس۔مو۔ج۔سراچے) د سرايا سرائے تصغير۔ (۱) وړوکے کور (يا تنبو)۔ (۲) دننۍ کوټه۔ کوټکۍ۔ (۳) قنات۔ (۴) د چرګانو د بندلو لويه ټوکرۍ۔

**سر اخور**:- (س+ر+ا+خو+ر)په اخور کښې د ټولو نه غوره اس هغه اس چې نورو اسونو نه وړاندې تړلے شي۔

**سرادق**:- (س+را+د+ق)(ع۔اس۔مو۔ج۔سرادقاتې)(۱) پرده۔ هغه پرده چې د ور کړکۍ يا تنبو کښې لګولے شي۔(۲) تنبو ته هم وائي۔

چې د نفس پهجره دې ماته کړه حافظه

مقامـــات دې د فردوس په سرادق وي

**سرار**:- (س+را+ر)(ع۔اس)د سپوږمۍ اخرې شپه۔ محاق۔

**سرارو**:- (س+را+رو)(ق۔اس۔مذ)د نايانو په اصطلاح کښې په لاس کښې يورګ۔

**سرازير**:- (س+را+زي+ر)(ف تر۔اس۔مذ)(و ـــ سراشيب)

**سراسر** :- (س+دا+س+ر)(ف - ص)ټول - د یو سرنه بل سر پورې.

چې مقصد یې سراسر له تا حاصل دې

درون خبث بــه نــهان لـــري له تانه (سعید خټک)

**سراسري** :-(س+را+س+ري)(ف - صف) (۱) سرسـري - پـه تـادۍ سـره - بـې توجهي سره -(۲) مختصراً - مجمل - (بغیر د غور او فکرنه)

**سراسیمګي**:- (س+را+س+مي+ګي)(ف - اس - مـو - ج - ي) حیـرت - پرېشـاني - وېره - سرتې - اولیزالي - ځلبلاندتوب -

**سراسیمه** :-(س+را+سي+م)(ف - ص)پرېشانه - په حیرات - اوتره کښې سترے - الویزاند - ځلباند -

**سراش** :- (س+را+ش)(ص - مذ)(و ـــ سرابښ)

**سراشیب** :- ( س+را+شي+ب)(ف تر - اس - مذ) زوېر - مخ په ښکته - اترائي

**ســرابښ** :- (س+را+خ/ښ)(ق ص - مـذ - مـو - سرابښـه ، ج - سرابښـے)حریص - حریصي - حرصناک -لالچي - شوم - بخیل - کنجوس -

**ـــ توب**:- (تو+ب)

**ـــ تیا**:-(ت+یا)حرصناکي - طمع - سوله - لالچ -

**سرابښند**:- (س+را+خ/ش+ن+د)(ق - اس - مذ) حرصي - حرصناک - حریص -

**سرابښول**:- (س+را+خ/ش+و+ل)(مص)حرص پېدا کول په (چاکښې) تحریص کول د څۀ څیز په نۀ کولو کښې ټنګول -

**سرابښونګ** :- (س+را+خ/ش+و+ن+ګ)(حمص)(و ـــ سرابښونه)

**سر ابښونه** :-(س+را+خ/ش+و+ن)(حمص) حـــرص پېـــدا کـــول -(پـــه چـــا کښې)تحریص ورکول -په څۀ خبره کلکول -

**سرابښوونکے** :- (س+را+خ/ش+وو+ن+کے)(اس - فـا - ج -کي)حـرص ورکـوونکے تحریص کوونکے -

**سرابښي** :- (س+را+خي/شي)(اس - مـو - ج - ۍ)حرص - طمع - د څۀ څیـز پـه زور کولو کلکېدنه -

**سرابښېدل** :-(س+را+خې/شې+د+ل)(مص) حرص پېدا کـول -حرصي کېـدل - د څۀ څیز په نۀ ورکولو ټینګېدل -

**سرابښېدنګ** :- (س+را+خې/شې+د+ن+ګ)(حمص)(و ـــ سرابښېدل)

**سرابښېدنه** :-(س+را+خې/شې+د+ن)(حرصي کېـدل - حرص پېـدا کېدنـه د څۀ څیز په نۀ ورکولو ټینګېدنه -

**سرابښېدونکے** :- (س+را+خې/شې+دو+ن+کے)(اس فـا - ج -کي)حرصي کېـدل - حرص کوونکے - د څۀ څیز په نۀ ورکولو ټیګېدونکے -

**سُراغ ـــ رساني**:-(ر+سا+ني)(ف تـر - اس -مـو - ج - نـۍ)د سراغ لګولـو کـار - د پټ غل قاتل وغېره پته لګولو پېشه -

**ـــ لګول**:- پته معلومول - د څۀ پټ کار یا پټ سړي پت معلومول-

**ـــ نخښنه ورکول**:اته پته ورکول -

بیا هسې مدد کړه چې خوشحال سره د تل کړي

بختـــه! د دې ور کښې ســـراغ نخښنه ومارا (خوشحال)

**سراغچ** :- (غ+چ)

**سراغوج** :- (غو+ج)

**سراغوچ** :- (غو+چ)(ف تر - اس - مذ)(و ـــ سراغوش)

**سراغوش** :-(س+را+غو+ش)(ف تر - اس - مذ) هغـه جالیـداره کځـوړه چـې زنانه پکښې د سر غونډ وېښتۀ نغاړي په مغرب او پـه ایران کښې ددې ډېر رواج دے - ګیسو پوښ-

**سراغې** :- (س+را+غ+ۍ)(اس - مو)نوم تورے - بدنامه ښځه - بد چلنه ښځه -

**ســراغي** :- (س+را+غـي)(اس - مـذ - ج - ان)ســراغ لګــوونکے - پټـه پتـه - معلوموونکے انکشاف کوونکے - سراغرسان -

**سرافګن** :- (س+را+ف+ګ+ن)(ف تر - صف - مذ - مو -افګنه)سر غورځوونکے - سر غوځوونکے - (توره وغېره)

**ســرافګندګي** :- (س+را+ف+ګ+ن+د+ګي)(ف تـر - اس - مو)سـر ښـکته کـول - عاجزي او خاکساري سر غورځونه -

**سـرافګنده** :- (س+را+ف+ګ+ن+د)(ف تـر - اس - مف)هغـه چـې سـر ئـې ښـکته کړے وي - شرمنده ملامته - فکر مند -

**سرافیل** :- (س+را+في+ل)(عبر - اس مع)د اسرافیل مخفف - پـه څلورو مقربـو ( خدا ے پـاک تـه نـزدې) فرښـتو کښـې د یـو نـوم - دا فرښـته بـه د قیامت پـه وخت صور(ښکر) غږوي -

**سراګاه** :- (س+را+ګا+ه)(و ـــ څراګاه)

**سرآمده** :- (س+را+م+د)(ف تر - مذ - ج - ان - مر - آمده - ج - مو آمدې) (۱) د ټولو سر - سردار - مشر -(۲) غوره - غوره کړے - چونړے -

**سرامني** :- (س+را+م+ني)(ق - اس - مذ) وړوکـے خونـاب چـې د طـب پـه اصطلاح کښې ورته "سرون" وائي-

**سرانجام** :-(ر+ا+ن+جا+م)(ف - تر)(۱) نتیجه - خاتمـه - (۲) تکمیـل - (۳) انتظام بندوبست -

**ـــ کول**:- (۱) ختمـول - سـر تـه رسـول -(۲) پـوره کـول -(۳) انتظـام کـول - بندوبست - فکر کول-

مهیا ومرګ ته کښېنه

سر انجام کړه د عقبیٰ (خوشحال)

**ـــ کېدل**:- (۱) ختمېدل - سرته رسېدل (۲) پوره کېدل(۳) انتظام او بندوبست کېدل-

د خاوند پـــه حکـم هسې فتح وشوه

چې یې کار شۀ په دوو ورځو سر انجام (خوشحال)

**پـه ـــ کېدل**:- بندوبست کول - غم یا فکر کول -انتظام کول-

راشه ته هم د توبې پـــه سر انجام شه

کـــاروانونه شو روان د مرګ له لاسه (خوشحال)

**سرانداز** :- (س+ر+ا+دا+ز)(ف تر - صف - مذ - مو - اندازه)(۱) د بیمارۍ د نشې یا د ناز نخرې په وجه سر خوځونکے (۲) یو قسم نقاب - (۳) د یو سُر نوم -

**سرَانداز**:- (س+ر+ا+ن+دا+ز)(ف تر - اس - مذ)(۱) سپوټکے - لوپټه -

(۲) چالاک - بې پروا - (۳) عاجزي کوونکے -

**ســراندیپ** :-(س+ر+ا+ن+دي+پ)(اس - مـع)د سـرو زرو جزیـره - د یـو مشـهورې جزیرې نـوم - د ځینـو عقیـده ده چې حضرت ادم ﷺ پـه دغـه جزیره راکوز شوے ؤ - لنکا / سري لنکا - (پخوا به ئې ورته سیلون هم وې) عـــرب ســـر اندیپ ته وائي سراندیل هم ورته وائي -

**سرانړه** :- (س+را+ن+ړ+ه)(اس - مو - ج - سرانړې)د دروازې د چوکاټ برنے لرګے -

**سرانه** :- (س+را+ن)(اس - مو - ج - سرانې)(و ـــــ سرانړه)

**سرانه** :- (س+را+ن)(ف اس مو - ج - سرانې) د مـال لکـه (څـاروي) پـه بدلـه کښې مال واخستے شي - او د خپل مال سره د قیمت پوره کولو د پاره څۀ نغدې روپۍ هم ورکړے شي - نو دې رقم ته سرانه وائي - (لکه یو سړے د خپلې چېلۍ په بدله کښې غوا اخلي- نو دغه غوا قیمت پوره کولو د پاره چې د خپلې چېلۍ نه علاوه کومې روپۍ ورکوي - نو دې نقدو روپو ته سرانه وائي

ـــ :-(س+را+ن)(اس ـ مو ـ ج ـ نې) د غر سر ـ

**سراو** :- (س+را+ؤ)(اس ـ صف) سري ورخ ـ اوبو ته نژدې ـ په مقابله کښې دغې زمکې (پاټې) چې د اوبو نه لرې وي ـ

**سراوره** :- (س+ر+او+ر)(ق ـ اس ـ مو)هغه خوارهٔ (شریني) چې په اوومه ورځ ناوې کره وړي ـ

**سراوره ـــ ته لاندې تلل**:- (ق)یعني د ناوې د اوومې ورځې شیریني په سر اوړل ـ

**سرراوړه** :-(س+را+ؤ+ړ)(ق ـ مو)(۱) ډېره ګنډه ګوډه ـ ازد حام ـ(۲) د هلکانو یوه لوبه

**سراوازه** :- (س+ر+ا+وا+ز)(ف تر ـ اس ـ مو)هغه سُر ناک اواز کوم چې د سندرې (عموماً د غزل) د وئیلو سندرغاړے وباسي ـ

**سراویل** :- (س+را+وي+ل)(ع ـ اس ـ مو) پرتوګ ـ شلوار ـ پاجامه ـ

**سراهند** :- (س+را+ه+ن+د)(ق ـ ص ـ مذ ـ مو ـ سراهنده ـج ـ سراهندې)

(۱) حرصي ـ حرصناک ـ سرابنند ـ (۲) هغه سړے چې د څهٔ څیز په نهٔ ورکولو کلک شي ـ (۳) په څهٔ څیز خبره نښتونکے ـ

**سرآهنګ** :- (س+ر+ا+ه+ن+ګ)(ف تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان ـــ سو اهنګه ـ ج ـ مو اهنګې)(۱) په لښکر کښې وړاندینۍ برخه ـ هراول (۲) سندره(۳) د موسیقۍ د یو سُر نوم ـ (۴) په ساز کښې د ټولو نه غټ تار کټے ـ

**سرائي** :- (س+را+ئي)(ف ـ لاحقه)(د سرانه پس یا ئي نښتي لګولے شي وه) مرکباتو کښې راځي ـ لکه نغمه سرائي نغمې یا سندرې وئیله ـ

**ســرائے** :- (س+را+ئے)(اس ـ مو ـ ج ـ ګانې ـ مذکر هم استعمالېږي ـ ج ـ سرایونه)(۱) هغه ځاے چې مسافر پکښې عارضي طور سره پاتې کېږي ـ مسافر خانه ـ (۲) کور حویلي ـ (۳) دنیا ـ

**سرائے** :- بقا(ب+قا) (ع تر ـ مو) د تل پاتې کېدو ـ سرائے یا کور بل جهان ـ

**ـــ جاوید**:- (جا+وي+د)(ف تر ـ مذ)د تل پاتې کېدو کور ـ بل جهان ـ

**ـــ جزاء**:- (ج+زا)(عف تر ـ مو)هغه کور چېرته چې به "بدله" ورکولے شي ـ بل جهان ـ

**ـــ فاني**:- (فا+ني)(عف ـ تر ـ مو)فنا کېدونکے ـ کور ـ تل نهٔ پاتې کېدونکے جهان ـ دا موجوده دنیا ـ

**ـــ واله**:سرائے وان ـ د سرائے خاوند ـ د سرائے چلوونکے ـ

**ـــ وان**:-(وا+ن)(اس ـ مذ ـ ج ـ ان ـ مو ـ نه)سرائے واله ـ د سرائے مالک یا منتظم ـ

**ـــ سپے**:- ډېر حریص ـ حرصي سړے ـ(د سرائے سپے دهر چا یاروي)

**سرائے** :- (س+را+ئے)(اس مع)د اکوړه ختک پخوانے نوم خوشحال خان ختک او نور د پخوانو شاعرانو په دې نوم یاد کړے دے ـ دا کلے د خوشحال خان ختک غور نیکهٔ ـ ملک اکوړ اباد کړے ؤ ـ او بیا د خوشحال خان ختک نیکونه هم دلته پیدا شوي وو ـ او د مغلو منصب خوار وو ـ خوشحال خان ختک هم دلته پیدا شوے ؤ ـ او د پلار نیکهٔ په شان د مغلو منصب دار ؤ ـ خو وروستو د مغلو مخالف شهٔ ـ

د بهار په وخت په بوره د سرائے ګرځه
نــهٔ پـــه بوره د کابل او د کشمیر (خوشحال)

**د ـــ سیند**:- سرائے د اکوړه ختک نوم او د سرائے او د سرائے د سیند نه مراد لنډے سیند دے چې د اکوړې په خوا کښې بهېږي ـ

**سرایت** :- (س+را+ي+ت)(ع ـ مذ ـ ج ـ ونه)د یو څیز نه بل څیز ته ورتېرېدهٔ د یو څیز نه په بل څیز کښې اثر کونه ـ

**ـــ کول**:- (مص) (د (حرارت وغېره) د یو څیز نه بل څیز ته ورتېرېدل ـ د یو څیز نه په بل څیز کښې اثر کول ـ

بیــا رباب د مفـــتي ښه سرایت کا
په نغمه کښې نوے نوے حکایت کا (خوشحال)

**ـــ کېدل**:- د(حرارت وغېره) ـ د یو څیز نه بل څیز ته ورتېرېدل یو څیز نه په بل څیز اثر کېدل ـ

**سرائچه** :- (س+را+ئے+چه)

**سرایچه** :- (س+را+ئي+چ)(و ـــ سراچه)

**سرابرد** :- (س+ر+اي+ګ/ړ+د)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)بالښت ـ بالین ـ سروبرد)

**سرابنسے** :- (ق) (س+ر+اي+خ+شے)(اس ـ صف ـ مذ)ذمي (نوے جوړ کړے لفظ دے)

**سراینده** :-(س+ر+اي+ن+د) (ف ـ فا ـ ج ـ ګان) سندر غاړے ـ سندرغاړے ویونکے ـ مغني ـ(سرائیدان ـ سندرې وئیل)

**سرب** :- (س+ر+ب) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)بېچوره ـ منځه ـ بجور ـ اوښته په ونه چې لرګے ئې د دروازو او فرنېچر د پاره پکارولے شي ـ

**ـــ** :- (س+ر+ب) (ص ـ مو ـ سربه) غټ ـ غوښن ـ (و ـــ خرب)

**ـــ والے**:- (و ـــ خرب والے)

**سبرب** :- (س+ر+ب) (ق ـ اس ـ مذ)علاج چاره ـ

**سربادے** :- (س+ر+با+د+ے)(اس ـ فا)لېونے ـ یاوه ګو ـ خشک مزاجه ـ

**سربادي** :- (س+ر+با+دي)(اس ـ مو ـ ج ی)لېونتوب (چې د سر د خشکۍ نه پیدا کېږي) خشک مزاجي ـ

**سربار** :- (س+ر+با+ر)(ف تر ـ اس ـ مذ)(۱) هغه غوټه (پنډوکے) چې د لوے بار د پاسه کښېښودے شي ـ (۲) سر بازي ـ

**سرباري** :- (س+ر+با+ري)(فپ تر ـ مو ـ ج ـ ئ)(۱) و سر ـــ بار (۲) د لوګو د ترلې شوے (د خر یا اوښ) د بار د پاسه یو څو لرګي نا ترلے کښېښودے شي ـ د یو څو لرګي د ترلي بار نه د جدا خرخولے شي د بار نه ئې سر باري درنه ده ـ (متل)

**سربازار** :- (س+رے+با+زا+ر)(ف تر ـ اس ـ مذ)په ډک بازار کښې ـ په ښکاره په ډانګ پئیلي ـ

**سربازي** :- (س+ر+با+زي)(ف ـ اس ـمو)سر ورکونه ـ سر بائیلنه ـ

د وصال دولت مـوندهٔ په سر بازي شي
چې په سر ویرېږي یافت د سرېر نهٔ شي (حافظ)

**سربال** :- (س+ر+با+ل)(ف ـ اس ـ مذ) قمیص ـ پیپنی ـ

**سربالا** :- (س+ر+با+لا)(ف ـ تر ـ اس ـ مذ)مخ په بره ـ ستغ ـ چړائي ـ سر بالاه ښهٔ دے که سر نیخو ؟ په دواړه د لغشت وي ـ (متل)

**سربام** :- (س+رے+با+م)(ف تر ـ صف)کوټې د چت د پاسه ـ د بام د پاسه ـ

**سربانده** :-(س+ر+با+ن+د)(اس ـ مو ـ ج ـ ي) (۱) د زمکې یو ټوټه چې په لویه زمکه کښې وي ـ(۲) د زمکې هغه ټوټه چې د یوې په وخت د اړولو نه پاتې شوې وي ـ پاره ـ غړے ـ

**سرباندے** :- (س+ر+با+ن+د+ے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ي)(۱) د دېوال برنۍ برخه ـ چې د دېوال په سر غونډه کړے شوے وي ـ(ق) ـ(۲) د دېوال د سر لیو

**سربانړه** :- (با+ن+ړ)(اس ـ مذ ـ ج ـ ي)هغه پړے چې یوې پرې ترلے شي چې عموماً د خرمنې نه جوړ شوے وي بدبزه ـ

**سربانه** :- (س+ر+با+ن+ړ+ه)(و ـــ سر بانړے)

**سربانے** :- (س+ر+با+ن+ړے+)(اس ـ مذ ـج ـ ي)(۱) د تنبو یا د خېمې د بر سر پړے ـ(۲) د قبیلې د جغ د ترلو پړے ـ

**سربت خېل** :- (س+ر+ب+ت+خېل)(اس ـ مع)د کله خېلو څانګه ده چې ملک

دین خېل افریدي دي۔

**سربخت** :- (س+ر+ب+خ+ت)

**سربښت** :- (س+ر+ب+خ/ش+ت)(و—— ثربښت)

**سربدال** :- (س+ر+ب+دا+ل) (ص۔ مو۔ سر بداله۔ ج۔ لي)هغه سړے چې سر پرې ګرځي۔ ګنګس۔ کنګس۔ دماغي لحاظ سره ستړے سر وهلے بر وهلے حېران او سرګردان۔

—— **تیا**۔ (ت+یا)سر بدالي۔ د سر ګرځېدنه۔ سرګرداني دماغي ګنګستیا۔ دماغي لحاظ سره ستړے والے۔

—— **کول**۔ سرګردانه ګنګس کول پرېشانه کول۔ دماغي لحاظ سره ستړے کول

—— **کېدل**۔ سر ګردانه کېدل۔ ګنګس کېدل پرېشانه کېدل۔ دماغي لحاظ سره ستړے کېدل۔

**سابدالي** :- (س+ر+اب+دا+لي)(اس۔ مو۔ ج۔ لي) سر ګرځېدنه۔ سرګرداني۔ د سر ګنګس کېدنه۔

**سربدل** :- (س+ر+ب+د+ل)(فپ تر۔ مذ) د سر بدل۔ قصاص۔

——۔(س+ر+ب+د+ل)(فپ تر۔ اس۔ مذ۔ مو۔ سر بدله۔ ج سربدلې)قربان۔ فدا۔

**سربدل خېل** :- (س+ر+ب+د+ل+خېل)(اس مع)د متهه خان خېلو څانګه ده۔ چې قمبر خېل افریدي دي۔

**سربدل کور** :- (س+ر+ب+د+ل+ک+و+ر)(اس مع)د مرادي خېلو یوه وړه څانګه ده چې د (لخه کور، داود خېل، ترک زئ) مهمند دي۔

**سربډاګه** :-(س+ر+ب+ډ+ا+ګ)(ق۔ اس۔ مذ) خوشے ګرځېدونکے۔ اواره ګرد بې پروا او لاابالي سړے۔

**سربډال** :- (ب+ډا+ل)(و—— سربدال)

**سربډالي** :-(س+ر+ب+ډا+لي)سر ګرځېدنه۔ اکر ګنګسوالے۔

**سربر** :- (س+ر+ب+ر)(اس۔ مذ)شاخ تراشي۔ شاخ بري۔

—— **کول**۔ شاخ تراشي کول۔

—— **کېدل**۔ شاخ تراشي کېدل۔

**سربرا** :- (س+ر+ب+را)(ق۔ ص) د کار انتضام۔ د کار انجام۔

—— **کول**۔ (ق)د څهٔ کار انتظام کول۔ د کار انجام کال۔

—— **کېدل**۔ (ق)انتظام کېدل۔ بندوبست کېدل۔

**سربراه** :- (س+ب+را+ه)د څهٔ کار لوے منتظم۔ د یوې ادارې مشر چلوونکے۔ د خاندان تولي۔ وغېره مشر۔

—— **کار**۔ (کا+ر)(ف تر۔ اس۔ مذ۔ مو۔ کاره)(۱) د مشر یا د سردار کارکوونکے (۲) منتظم۔ مهتمم۔

—— **کاري**۔ (کا+ري)(ف تر۔ مو۔ ج۔ ئ)د سربراه ذمه داري۔ د مشر کار۔

**سربراهي** :-(س+ر+ب+را+هي)(ف تر۔ مو۔ ج۔ هئ)مشري۔ سرداري۔ پېشوائي

**سربرخېل** :-(س+ر+ب+ر+خېل)(اس۔ مع)د بازید خېلو څانګه ده چې (جواکي ادم خېل)افریدي دي۔

**سربښت** :- (س+ر+ب+خ/ش+ت)(اس۔ مذ)(و—— ثربښت)

**سربند** :- (س+ر+ب+ن+د) (ق اس۔ مذ۔ ج۔ ونه) (۱) هغه پړے چې تخته پرې تړلې شوې وي کومه چې په غوبل کښې رابښکے شي۔ (۲) د اوبو د ولې اولنے بند۔ (د سربند) (۳) په پښتونخوا کښې د ډېرو ځایونو او کلیو نوم۔

**سربندي** :- (س+ر+ب+ن+دي)(ق۔ اس۔ مو۔ ج ئ) (۱) د ډېوال اخیرنۍ مهره۔ (۲) نامزدادي۔

**سربنړے** :- (س+ر+ب+ن+ړے)(اس۔ مذ۔ ج۔ ړي) نولے، مشهور جناور چې د مار او منږک دښمن دے۔

——۔ (س+ر+ب+ړے) (اس۔ صف۔ مذ۔ ج۔ ي۔ مو۔ ې) (۱) هغه کس چې د سر وېښتهٔ ئې ستر وي سور سرے۔(۲) هغه سړے چې په رنګ کښې ئې سوروالے وي۔ سور بڼے۔

**سربول** :- (س+ر+بو+ل)(مص۔ مت) (و—— ثربول)

**سربوله** :- (س+ر+بو+ل)(و—— ثربوله)

**سربوڼے** :-(س+ر+بو+ن+ړے)(اس۔ مذ۔ ج۔ ي)نولے۔ مشهور چې د مار سخت دښمن دے۔

**سربونه** :- (س+ر+ب+ؤ+ن)(حمص)(و—— ثربونه)

**سربوونکے** :- (س+ر+ب+وؤ+ن+کے)(اس فاع۔ مذ)(و—— ثربوونکے)

**سربه** :- (س+ر+ب)(ق۔ اس۔ مو۔ ج۔ بې) لاښه۔ لاش۔ جیفه۔ درنګه

——۔ (س+ر+ب) (ق۔ اس۔ مو)قصابي۔

——۔ (س+ر+ب) (صف۔ مو۔ ج۔ سربې) (و—— ثربې)

**سربې** :- (خدران) س+ر+بې)(اس۔ مذ۔ ج۔ بې) د پړانګ په شان یو وړوکے ځناور چې خلق پرې ښکار کوي۔ افریدي ورته ونګیر وائي۔

**سربېتي** :- (س+ر+بې+تي)(اس۔ مذ۔ ج۔ بېتې)د جاسوسانو مشر۔(ق)

**سربېدل** :- (س+ر+بې+د+ل) (مص۔ مو) (و—— ثربېدل)

**سربېدنه** :- (س+ر+بې+د+ن) (حمص)(و—— ثربېدنه)

**سربېرن** :- (س+ر+بې+ر+ن)(ص۔ مذ۔ مو۔ بېرنه۔ ج۔ بېرنې)سر سري۔ د سر د پاسه۔ برسیرن۔

**سربېره** :- (س+ر+بې+ر)(ص۔ مو ج۔ بېرې) د سر د پاسه۔ د پاسه۔ علاوه۔ (دې سره د، له، یاد، په، کلمې راځي۔ لکه سر بېره له —— یا سر بېره پر —— )

**سر بېره —— خونه**۔(خو+ن)(په تر۔ اس۔ مو۔ ج۔ نې) برتۍ خونه۔ هغه خونه چې د بلې خولې د پاسه وي۔ بالاخانه۔

—— **کول**۔ زیاتې کول۔ ورزیاتول۔

—— **کېدل**۔ زیاتېدل۔ ورزیاتېدل۔

**سربېښت** :- (س+ر+بې+خ/ش+ت)(ق۔ اس۔ مذ)سر سینه۔ سر پښتۍ۔

**سرپ** :- (س+ر+پ+یاش+ر+پ)(ق۔ اس۔ مذ)(۱) سرب۔ مشهور دات۔ لیکه۔ (۲) د یوې غرئیزې ونې نوم چې د چلغوزې په شان وي۔

——۔(س+ر+پ) (ق۔ مذ۔ اس۔ صورت) (۱) په لومه کښې ایسار د مارغهٔ د وزرو وهلو اواز۔ (۲) شړپ۔

—— **کول**۔(۱) په لومه کښې د مارغهٔ وزر وهل۔ (۲) شړپ کول۔ په تادۍ سره تلل (لکه: سرپ سهٔ د کوره ووت)

—— **کېدل**۔ (۱) په لومه کښې د مارغهٔ وزر وهل کېدل۔(۲) په تادۍ سره یا فوراً تلل۔

—— **وهل**۔ناڅاپه حمله کول۔ لکه: ناخبره که یو شي دربانديې رپ وهي۔ (نو څهٔ وي)

**سرپاره** :- (س+ر+پا+ګ/ړ)(اس۔ مذ) سره مخه۔ سر جناد۔ مشهوره بیماري۔

**سرپاړے** :- (س+ر+پا+ګے/ړے)(اس۔ مذ)سر جناد۔ مشهور مرض چې سر او مخ پکښې وپړسېږي۔

**سرپاړے** :- کېدل: د سره مخه بیماري کېدل۔

**سرپاغے** :- (س+ر+پا+غے)(ق۔ اس۔ مذ) (و—— سرپاړے)

**سرپټه** :- (س+ر+پ+ټ)(پ تر۔ مو۔ ج۔ پټې)هغه جینۍ چې سر ئې پټ وي۔ مجازاً پېغله۔ نا وادهٔ کړې جینۍ۔

**سرپراز** :- (س+پ+را+ز)(ص - مذ)(و ـــ سرفراز)

**سرپرائيز** :-(س+ر+پ+را+ئي+ز)(انگ - سر - مذ)حيرت - حيرانتيا - تعجب -

**ـــ ورکول**:-(انگ - پ تر - مص)چاله څۀ داسې څيز تحفه وغيره ورکول چې د هغۀ توقع نۀ وي - او حيران پاتې شي -

**سرپرده** :- (ف مو - ج - د ے)(۱) د سر پرده مخفف دے - و ـــ سر پرده - (۲) د يو راګ نوم دے -(۳) د يوې سندرې سُر - چې امير خسرو ايجاد کړے ؤ -

**سرپرست** :-(س+ر+پ+ر+س+ت) (ف تر - مذ - مو - پرسته - ج - پرستې) حفاظت او پالنه کوونکے - نګهبان نګران - محافظ - مرسته کوونکے -

**ـــ کول**:- مشر جوړول -خپل محافظ او خپل پالونکے جوړول -

**ـــ کيدل**:- د چا د پالنې او حفاظت ذمه داري قبلول - د چا نګهبان او نګران جوړول -

**سرپرستي** :-(س+ر+پ+ر+س+تي)(ف تر - اس - مو - ج - ی)حفاظت - پالنه - مرسته - نګراني - نګهباني -

**په ـــ کښې**:- په مشرۍ کښې - د چا په حفاظت او نګهبانۍ کښې د چا په پالنه او روزنه کښې -

**سرپرک مشر** :- (س+ر+پ+ر+ک+ م+ش+ر)(ق - اس - مذ - ج - ان) لوے پرک مشر - په افغانستان کښې يوه لويه عهده -

**سرپرے** :-(س+ر+پ+رے)(ق اس - مذ - ج - پري) د مرغو يو قسم چې وزرې ئې سره او نور وجود ئې تور وي -

**سرپرے** :- (س+ر+پ+رے) (و ـــ سر پربکړے)

**سرپربکړے** :- (س+ر+پ+ري+ک+ړے)(پ تر - اس - مف - ج -پربکړے) هغه چې سر ئې پربکړے شوے وي - سرپريده -

**سرپښتۍ** :-(پ+خ/ش+ت+ئ)(ق - اس مو)سرسينه - د قصابانو اصطلاح کښې د ګډانو وغيره په بدن کښې يو خاص برخه -

**سرپک** :- (س+ر+پ+ک) (ق ص) سرسري (د توپک ګولۍ چې ايله په بدن ولګي)

**سرپناه** :- (س+ر+پ+نا+ه) (اس - مو - ج -ګانے)د سر پناه - محافظ - حفاظت کوونکے -د دېوال په سر ګولۍ - يا د لرګي ډکي وغيره چې دېوال پرې د باران نه بچ شي -

**سرپناهي** :- (س+ر+پ+نا+هي)(اس - مو)(۱) د سر حفاظت - حفاظت -(۲) د دېوال د سر چجه وغيره چې د دېوال پرې د باران نه بچ وي -

**سرپنجه** :- (س+ر+پ+ن+ج) (ف تر - اس - مو) (۱) لفظـــي - د لاس پنجـــه - (۲) زور - قوت - طاقت - (۳) ظلم - زور زياتے -

**سرپنج/پاپينچ** :- (س+ر+پ+ن+ج/پي+ن+چ) (فـا تر - اس - مـذ -ج - ان)(۱) د پنجانو مشر ، د جرګې مشر - (۲) (طنزاً) د يوې ورانکارۍ ډلې مشر -

**سرپوټکه** :-(س+ر+پو+ټ+ک)(اس -مو ج - پوټکۍ)د يوې مرغۍ نوم - کوئله - سپېر کونډه -

**سرپوښ** :- (س+ر+پو+خ/ش)(فـپ تـر - س - مـذ -ج - ونـه)د لوښـو وغيـره سـر پوښې د پاسه کښېښودلے شي - برغولے -

**ـــ بېرته کېدل**:- راز ښکاره کېدل - پټه خبره يا څيز څرګند ېدل -

**سرپول** :-(س+ر+پو+ل)(مص) مرغۍ په وزرو وهلو روستل (لکه چې مرغۍ په دام کښې ګېره شي او هغه هغه وزرې وهي) - وزرې څنډل -

**سرپولے** :- (س+ر+پ+و+لے)(اس -مف - ج - لي)(مرغۍ) په وزرو وهلو راوستے شوے

**سرپونګ** :-(س+ر+پو+ن+ګ)(و ـــ سريونه)

**سرپونه** :- (س+ر+پ+و+ن)(حمص)د وزرو وهنه د الوتو په کوښښ کښې وزرې زر زر خوځونه -

**سرپوونکے** :- (س+ر+پ+وو+ن+کے)(اس - فا - مذ - ج - کي)د مرغۍ ، په وزرو وهلو يا څنډلو روستونکے -

**سرپوه** :- (س+ر+پو+ه)(اس - مو) فلسفه

**سرپه** :- (س+ر+پ)(اس -مو ج - سرپې)(۱) دريغ - ژغورنه - (۲) اشتها - شوق - خواهش - لو -(دا لفظ اصلاً عربي ، صرف، نه وتے دے - وروستو ئې په معنو کښې تغئير راغلے دے - سرپه د پښتو تلفظ دے - عموماً "صرفه" ليکلے کېږي -

**ـــ پرشي نۀ کول**:-(۱) په څۀ څيز باندې د خپل طاقت د استعمال نه ځان نه ژغورل -(۲) مال دولت بې خرته خرڅ کول -(صرفه په شي نۀ کول)

**ـــ په نۀ ماتېدل**:- (ق) د څۀ څيز په خوړلو يا کولو نۀ مړېدل -(عام طور سره - سفرا يا صفرا ماتېدل وائي)

**سرپهار** :- (س+ر+پ+ها+ر)(اس -صوت)د مرغو د وزرو د وهلو يا څنډلو اواز (خصوصاً په ام کښې)

**سرپے** :- (س+ر+پے)(و ـــ سرپهار)

**سرپېدل/څرپېدل** :- (س+ر+پې+د+ل) (مـــص)د مرغـــۍ (پـــه دام کښـــې دګېرېدو په وخت) وزرې وهـل - د الوتـو پـه کوښـښ کښـې وزرې څنډل - (اردو - پهړ پهړانا)

**سرپېدل/څرپېدل** :- (س+ر+پې+د+ل)(اس - مف - ج - لي)هغه مرغۍ چې دام کښې ګېرې شوے وي او وزرې ئې وهلې وي - زخمي شوے -

**سرپېدنګ/څرپېدنګ**:- (س+ر+پې+د+ن+ګ)(و ـــ سر پېدنه)

**سرپېدنه/څرپېدنه** :- (س+ر+پـې+د+ن)د مرغۍ وزرې وهـل - لکـه پـه دام کښې ګېرې شوې مرغۍ - يا حلاکه کړې شوې مرغۍ چې وزرې وهي -(اردو - پهړ پهړانا)

**ســـرپېدونکے/څرپېدونکے** :- (س+ر+پـې+دو+ن+کے)(اس - فـا - ک - کي)هغـه مرغۍ چې وزرې وهي - لکه په دام کښې - يا د حلالېدو نه پس -

**سرپيښتے** :-(س+ر+پي+خ/ش+تے) (ق - مذ)سر سينه - د قصابانو په اصطلاح کښې د ګډ په غوښه کښې يو خاص حصه -

**سرپين** :- (س+ر+پي+ن)(ق - اس - مذ - مو سرپينه - ج - سرپينې) د سرپ نه جوړ - سپين يا سيکې نه جوړ -

**سرت** :- (س+ر+ت) (اس -صو - مذ)غړپ -

**سرتا** :- (س+ر+تا)(ق - اس - مو - ج - سرتې)د زنانۀ د څادر نه ګېر د چاپېر د ريښمو کار -

**سرتابي** :- (س+ر+تا+بي)(ف تر - اس -مو - ج -بۍ) سر تـاوول - نافرمـاني - سرکښي -

**سرتاج** :- (س+ر+تـا+ج)(ف تـر - اس - مـذ)(۱) د سـرتاج - (۲) خاونـد - څښـتن - (۳) يو قسم د سر کالے -

**سرتاق** :- (س+ر+تـا+ق)(ف تـر - اس - مـذ)يو قسم واسکټ چې د قميص د لاندې اغوستے شي -

**سرتانګ** :- (س+ر+تا+ن+ګ) (اس - مذ - ج -ونه)داسې د زين دويم تانګ -

**سرتاؤ** :- (س+ر+تا+ؤ)(فپ تر - مذ)سر تاوول - نافرماني -

**سر تراش** :-(س+ر+ت+را+ش)(ف تر - اس - مذ)نائي - حجام -

**سرتراشي** :-(س+ر+ت+را+شي)(ف تر - مو - ج - شۍ)(۱) سر خرئيل - حجامت - (۲) د ونو بوټو څانګې و پاڼې تراش او يو خاص شکل ورله ورکول -

**سر تړوکے** :- (س+ت+ړو+کے)(اس ۔مذ ۔ج ۔کي)سر تړونے۔
**سر تړونے** :- (س+ر+ت+ړو+نے)(پ تر ۔اس ۔مذ ۔ج ۔ني)د زنانۀ د سر د تړلو کپړه یا رومال (دا عموماً توره کپړه وي او درې گتیزه وي ۔
**ـــ بلا راتلل**:۔ (ق)کنایه :ناگهانه څۀ مصیبت یا نا جوړتیا راتلل ۔
**سر تمبگي** :- (س+ر+ت+م+ب+گ+ی)(په تر ۔مو) ضد کونه ۔ په څۀ خبره نښتنه ۔ضدیت (ق)
**سر تمبه** :- (س+ر+ت+م+ب)(پ تر ۔اس ۔مو ۔ج ۔تمبې) ضد ۔ پـه خبـره اړکېدنه ۔ سرکښي ۔
**ـــ**:۔(س+ر+ت+م+ب)(اس ۔صف) سر کښ ۔حکم نۀ منونکے ۔ضدي ۔ په څۀ خبره نښتونکے ۔
**سرتناؤ** :- (س+ر+ت+نا+ؤ) (ق پ تر ۔مذ ۔ج ۔ونه) د مرزانو د جال د پورتنے سر اوږد پړے ۔
**سر تور** :- (س+ر+تو+ر)(ص ۔مذ ۔مو ۔توره ۔ج ۔تورې)(۱) چې پـه سر ئې ټوپۍ پټکے (یا د ښځو په صورت کښې لوپټه وغېره) نه وي ۔
(۲) مجازاً غریب او مفلس ته هم وائي ۔
**ـــ مه/شې**:۔ دعایه جمله ۔ بې عزته مه شې ۔ خدائے دې عزت په ځائے وساته
**سر توروالے** :- (س+ر+تو+ر+وا+لے)(مذ ۔ج ۔والي)(۱) پـه سر د ټوپۍ یـا پټکي وغېره نه "بودل" برهنه سري ۔ (۲) بې عزتي ۔
**سر تورول** :- (س+ر+تو+ر+و+ل)(مص ۔مذ)د چا د سر نه پټکے یا لوپټه لرې کول بې عزته کول ۔
**سر تورونگ** :- (س+ر+تو+ر+ن+گ)(حمص)(وـــــ سرتورونه)
**سر تورونه** :- (س+ر+تو+ر+و+ن)(حمص)د چا د سر نه پټکے یـا لوپټـه لرې کونه بې عزتي کونه ۔
**سر تورونکے** :- (س+ر+تو+ر+وو+ن+کے)(فاع ۔مذ ۔ج ۔سرتورونکي ۔مو سر تورونکې)د چا د سر نه پټکے یا لوپټه لرې کوونکے ۔بې عزتي کوونکے ۔
**سر توره** :- (س+ر+تو+ر)(ص ۔مو ۔ج ۔تورې)(۱) د سر تـور تانیث ۔ (۲) مجازاً کنډه ښځه ۔ هغه ښځه چې خاوند مړ وي ۔
**ـــ کېدل**:۔ (۱) د سر نه لوپټه یا پړونے لرې کېدل ۔ کنایه:د ښځې خاوند مړ کېدل ۔ کنډه کېدل ۔ لکه: فلانۍ خواره سر توره شوه ۔(۲) د سر نـه لوپټـه یـا پړونے کوزېدل بې عزتي۔ نخښنه هم ده ۔ بې عزته کېدل ۔بې حرمته کېدل ۔
**ـــ مه شې**:۔(۱) د سر لوپټه دې کوزه مه شـه ۔ مجازاً خدائے دې د سر سورے لره ۔ (۲) بې عزته مه شې خدائے د شرم پرده لره ۔
**ـــ ښېرې کول**:۔د ښېرو یا بد دعا په وخت سر تورول چې دغـه ښېره قبولـه شي ۔(خیال دے چې په داسې طریقه دعا ضرور قبلېږي)
**ـــ سر تورې**:۔ (س+ر+تو+رې)(اس مو ۔ج ۔ئ)(۱) د سر نه ټوپۍ پټکے یا لوپټه لرې کېدنه ۔ مجازاً بې عزتي ۔ (۲) کنډېدنه ۔
**ـــ په سر تورے ژړل**:۔(۱) په ژړا فریاد کښې د سر نه لوپټه یا پټکے لرې کول ۔ د زړۀ د اخلاص ژړل چې د ژړا یا فریاد اثر پیدا شي یـا دعـا ئې د خدائے پاک په درقبوله شي ۔ (۲) ډېر افسوس او ارمان کول ۔ تندے په دواړو لاسه وهل ۔
**سر تورېدل** :- (س+ر+تو+رې+د+ل)(مص ۔مو)(۱) د سر نـه ټوپۍ ، پټکے یـا لوپټه لرې کېدل ۔مجازاً بې عزتـه کېدل ۔(۲) د ښځې کُنډېدل ۔ خاونـد مړ کېدل ۔
**سر تورېدنگ** :- (س+ر+تو+رې+د+ن+گ)(حمص)(وـــــ سر تورېدنه)
**سر تورېدنه** :- (س+ر+تو+رې+د+ن)(حمص)(۱) د سر نـه ټوپۍ پټکے یـا لوپټـه لرې کېدنه ۔بې عزت کېدنه ۔(۲) د ښځې خاوند مړکېدنه ۔کُنډېدنه ۔
**سر تورېدونکے** :- (س+ر+تو+رې+دو+ن+کے)(مف ۔مذ ۔ج ۔سر تورېدونکي ۔مـو سـر تورېـدونکې) د سـر نـه ټـوپۍ ۔پـټکے لـرې کېـدونکے بـې عزتـه کېدونکے ۔
**سر تورېدۀ** :- (س+ر+تو+رې+د)(حمص)(وـــــ سر تورېدنه)
**سر تونے** :-(س+ر+تو+نے)(ق ۔اس ۔مذ)(وـــ سر تړونے)
**سر تے** :- (س+ر+تے)(اس ۔مـذ ۔ج ۔تـي ۔مـو ۔تۍ)پرېشـاني ۔سراسـیمگي ۔ سرگرداني۔
**سر تېر** :- (س+ر+تې+ر)(ص ۔مذ ۔مو تېره ۔ج تېرې)هغه چې د سره تېر وي ۔ په څۀ معامله سر ورکولو ته اماده وي ۔سر باز ۔ بهادر ۔ زړۀ ور
**سر تېرے** :-(س+ر+تې+رے)(اس ۔صف ۔مذ) (وـــ سر تېر)
**سر تېري** :- (س+ر+تې+ري)(اس ۔مو ۔ج ۔تېرې)د سر تېرېدنه ۔د سر قربانۍ ته امادگي ۔ بهادري ۔ شجاعت زړۀ ورتوب ۔ مېړانه ۔
**ـــ کول**:۔ مړانه کول ۔ بهادري کول ۔ د سر نه تېرېدل ۔
**سـر تـاکے** :- (س+ر+تـا+کے)(پ تـر ۔اس ۔مـذ ۔ج ۔ي)سـر شـمېر ۔ د څـادر و محصول ۔
**سر تمبه گي** :- (س+ر+ت+م+گي)(اس ۔مو ج ۔ی) سرکښـي ۔ نافرمـاني ۔ سر زوري
**سـر ټنمبـه** :-(س + ر+ټ +م+ ب)(صـف ۔مـو ۔ج ۔ټنبـې) سـرزوره ۔ سـر کښـه ۔ نافرمانه (ق)
**سر ټیټوالے** :- (س+ر+ټي+ټ+وا+لے)د سر ښکتا کېدنه ۔ شرمندگي ۔
**سر ټیټه** :- (س+ر+ټي+ټ)(اس ۔مذ ۔ج ۔ټي) سر ټیټونه ۔سر ښکته کونه ۔ د حیا شرم په وجه سر ښکته کونه ۔
**ـــ کول**:۔ د چا سر ښکته کـول ۔شرمول ۔ شرمنده کـول ۔ذلیـل کـول ۔لکـه :د فلانې ئې سر ټیټ کړۀ ۔
**سر ټیټے** :- (س+ر+ټي+ټے)(ص ۔ج ۔ټي) سر ښکته شوے ۔شرمنده ۔ خجل ۔ بې همته ۔
**ـــ کول**:۔(مص) سر ټیټول ۔ سر ښکته کول ۔شرمنده کول ۔
**ـــ کېدل**:۔ سر ښکته کېدل ۔ شرمنده کېدل ۔
**ـــ سـر ټیټـي**:۔ (س+ر+ټي+ټي)(اس ۔مـو) سر ټیټونـه ۔ سر ښکتـه کونـه ۔سـر ځوري ۔ سر زوړندونه ۔
**سر ټیکس** :-(س+ر+ټ+ک+س)(انگ ۔اس ۔مذ ۔ج ۔ونه) اضافي ټیکس
**سرج** :- (س+ر+ج)(انگ ۔اس ۔مذ)یو قسم وړین ټوکے ۔چې کوټ واسکټ یا سوټ ترې جوړولے شي ۔
**ـــ**:۔(س+ر+ج)(انگ ۔اس ۔مذ)(ع ۔اص ۔مذ ۔ج ۔سرجونه)د اس زین۔
**ـــ باندې کول**:۔ اس باندې زیـن کښېښـودل ۔ اس زیـن کـول ۔ د سفر (یا چېرته تللو) تکل کول ۔

ځوک به روغ سلامت پرې نه ږدي په ملـک کښې
بیـــا ئـــې بـانـدې کړل تاخـــونو تـه سرجونه (خوشحال)

**سرجارے** :-(س+ر+جا+رے)(س ۔ تر ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ي) سر بها ۔ فدیه ۔ سرے ۔ (مروت)
**سرجري** :- (س+ر+ج+ري)(انگ ۔اس ۔مو)جراحي د علاج د پاره دبني ادم (یا د حیوان) د وجود د شلولو علم ۔
**سرجمع** :- (س+ر+ج+ع)(اس ۔مو ۔ج ۔جمعې)میزان ۔ ټوټل ۔
**سـرجن** :- (س+ر+ج+ن)(انـگ ۔اس ۔مذ)هغـه ډاکټـر چـې د سـرجري یعنـي د

جراحي ماهر وي ـ

**سرجنبت** :(س+ر+ج/ش+ت)(ق ـ مذ)د کار طریقه ـ د عمل طریقه ـ

**په ـــ پوهل**:ـ (ق)د څهٔ کار د کولو په طریقه پوهېدل ـ

**سر جنگ** :- (س+ر+ج+ن+گ) (اس ـ مذ ـ مو ـ ه)(۱) ورانـدې تلـونکـے ـ لښـکر ـ (۲) د لښکر جاسوسي څنگه ـ

ـــ:ـ(س+ر+ج+ن+گ) (ف تر ـ اس ـ مذ) د جنگ مشر ـ سپه سالار جرنېل ـ

**سر جوش** :- (س+ر+جو+ش)(ف تر ـ اس ـ مذ)د ښوروا په سر حصه چې غوړه وي د ښوروا د سر غوړوالے ـ

**سر جه** :- (س+ر+ج)(ق ـ مو ـ ج ـ سرجې)د واورې کلکېدل ـ(جماؤ) "سره" هم ورته وائي ـ

**ـــ کېدل**:ـ (مص)واوره جوړېدل ـ د اوبو حجاء چې واوره ترې جوړېږي ـ واوره کېدل ـ سره کېدل ـ

**سرجي** :- (س+ر+جي)(س ـ مذ ـ ج ـ زن)د زینونو جوړېدونکے ـ (په عربي کښې ورته "سراّج" وائي)

**سرجکل** :- (س+ر+جي+ک+ل)(انگ ـ صف)هغه کار یا ځاے چې سرجري (جراحي) سره تعلق لري ـ

**ـــ وارډ**:ـ (وا+ر+ډ)(انگ ـ تر ـ مذ ـ ج ـ ونه) په هسپتلا کښې د هغو مریضانو ځاے چې د چا په بدن د سرجري یعنې د جراحي عمل کولے شي یا شوے وي ـ

**سر ځوړ** :-(س+ر+(د)ز+و+ړ)(ص ـ مذ ـ مو ـ ځوړه ـ ج ـ ځوړے)(۱) سر په ښکته ـ سر په زوړند ـ سر په زوړ ـ (۲) خفه غمژن ـ

**سر ځوړے** :-(س+ر+(د)ز+و+ړے)(اس ـ صف)(۱) زوړند سر ـ سر ټیټے ـ سر په ښکته ـ (۲) ملامته ـ شرمنده ـ(۳) په سوچ او فکر کښې ـ فکر مند ـ

**سر ځوېږي** :- (س+ر+(د)ز+وې+ړي)(اس ـ مو ـ ج ـ ځوېږي)سر په ښکته والے ـ زوبړ طرف ته مخه ـ

**سرځے** :- (س+ر+(د)زے)(ق ـ)هغه په مخکښې ـ

**سرچ** :- (س+ر+چ)(انگ ـ اس) لټون ـ تلاش ـ پلټنه ـ

**ـــ لائټ**:ـ (لا+ئ+ټ)(انگ ـ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه تېزه او تـر لـرې رسېدونکے رڼا چې د خاص الې په ذریعه (عموماً د لوړ ځاے نه) غورځولے شي ـ رڼا غورځوونکے ـ

**سر چپه** :- (س+ر+چ+پ)(اس ـ مو ـ ج ـ پې)لایه چپه ـ لاړے لهر ـ

**سر چمه** :- (س+ر+چ+م)(ق اس ـ مو ـ ج ـ سرچمې)د ټوپک چره ـ ساچمه

**سرچومه** :- (س+ر+چو+م)(اس ـ مو ـ ج ـ پې)(وـــ سرچمه)

**سرچپړے** :-(س+ر+چې+ړے)(ق ـ مذ)سر ټیټے ـ سر نگون ـ زوړند سر ـ

**سر چین** :-(س+ر+چي+ن)(ف تر ـ اس ـ مذ ـ مو ـ چینه)غوره ـ چوڼ کړے ـ خلاصه برگزیده ـ

**سر چینه** :- (س+ر+چي+ن)(پ تر ـ مو ـ ج ـ چینې)(۱) د چشمې سر ـ د کاریېز د چشمې سر ـ(۲) مجازاً د هر کار د شورو (شروع) کېدلو ځاے یا شورو کوونکے ـ

**سرڅړے** :- (س+ر+س+ړے) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ څړي)یو نازک بوټے چې وړوکے وړې پاڼې کوي ـ

**سر ښوړه** :- (س+ر(ت)سو+ړ)(ق ـ ص)سر په ښکته ـ د تول په صطلاح کښې درون والے ـ (چې د تلې سر په ښکته وي)

**ـــ تلل**:ـ(مص)درون تلل ـ د پوره وزن نه لږ زیات اچول ـ چې د تلې سر لږ په ښکته شي ـ

**سر ښوړے** :- (س+ر+(ت)سو+ړے)(ق ـ ص ـ ج ـ ښوړي ـ مؤ: ی)(۱) سر ټیټے ـ سر په ښکته ـ(۲) مجازاً ـ شرمنده ـ ملامته ـ خجل ـ

**سر ښوړي** :- (س+ر+(ت)سو+ړي)(ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ ئ)د سر زوړندېدنه ـ سر ښکته کېدنه ـ مجازاً شرمندگي ـ ملامتیا ـ خجالت ـ

**سر څه** :- (کاکړ)س+ر+څ)(اس ـ مو ـ ج ـ څې) یخ ـ ساړهٔ ـ سړه ـ پښاور (کاکړ) ـ

**سر ښېره** :- (س+ر+(ت)سې+ر)(ص ـ مو) سم نیغ ـ

ـــ:ـ (س+ر+(ت)سې+ر)(اس ـ ظرف)ښکاره ـ اوڅار ـ روښانه ـ بیوره ـ

**سر ښېړه** :- (س+ر+(ت)سې+ړ)(وـــ سرڅوړه)

**سر ښېړے** :- (س+ر+(ت)سې+ړے) (وـــ سرځوړے)

**سرح** :- (س+ر+ح)(ع) (۱) څرېدل ـ(۲) څرته پرېښودل ـ(۳) څرېدونکے څاروے

**سرحد** :- (س+ر+ح+د)(ف تر ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) حد فاصل ـ د یو ملک یا د علاقې پول چېرته چې یو ملک ختمېږي او بل شورو کېږي ـ(۲) د پاکستان هغه صوبه چې د اټک سیند نه قبلې ته پرته ده ـ چې پښتانهٔ پکښې اوسي ـ

**ـــ دار**:ـ (دا+ر)(ف تر اس ـ مذ ـ ج ـ ان)د سرحد یعنې د یو ملک د پولې حفاظت کوونکے ـ

**سرحدات** :- (س+ر+ح+دا+ت)(اس ـ ج)د سرحد جمع ده ـ سرحد ونه د یو ملک اخري حدود د یو ملک پولې ـ

**ـــ ازاد**:ـ د یو ملک داسې پولې چې د تگ راتگ پکښې څهٔ پابندي نهٔ وي د ازادو علاقو سرحدونه ـ

**ـــ تر تېرېدل**:ـ د یو ملک د پولې نه ور اوړېدل ـ دیو ملک پوله ماتول ـ

**د ـــ محافظ**:ـ هغه لښکر چې د یو ملک د سرحدونو (پولو) حفاظت کوي ـ چې بل ملک ددغې پولې نهٔ راوړي ـ

**سرحدي** :-(س+ر+ح+دي)(ف ـ صف)(۱) سرحد سره تعلق لرونکے ـ (۲) د سرحد په صوبه کښې اوسېدونکے ـ (۳) د یو ملک د سرحد (پولې) سره تعلق لرونکے ـ

**ـــ ټانه**:ـ (ټا+ن+ه) (اس ـ مو ـ ج ـ نې)هغه ټانه (څوکۍ) چې دیو ملک په پوله یا پولې ته نزدې، ددغې ملک د حفاظت د پاره جوړه شوې وي د پولې د حفاظت جوړه شوې وي د پولې د حفاظت کوي ـ

**ـــ کمسیون**:ـ (ک+م+س+یو+ن)(ف تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د سرحد په باره کښې مقرر شوي کمېشن هغه جومات چې د سر په باره کښې فېصله کوي ـ

**سر حلقه** :- (س+ر+ح+ق+ل)(ف تر ـ صف)(۱) د حلقې یا د ټولې سر ـ د ټولې مشر د کوم جومات، غونډې ـ سردار ـ (۲) صدر نشین ـ

**سرخ** :- (س+ر+خ)(وـــ څرخ)

ـــ:ـ (سُ+ر+خ)(ف ـ صف) سور ـ سر رنگ واله ـ

**ـــ بېد**:ـ (بې+د)(ف تر ـ اس ـ مذ)سره خوله ـ د خرولے په اوس قسمونو کښې یو قسم ـ

**ـــ پوش**:ـ (پو+ش)(ف تر ـ مذ ـ ج ـ ان ـ مو ـ پوشه) (۱) هغه سړے چې سرې جامې ئې اغوستې وي ـ(۲) د سرحد یو تحریک چې خدائي خدمتگار نومېدهٔ ـ خو د سرو جامو له کبله په سرخپوش هم مشهور شهٔ ـ د دې تحریک باني خان عبدالغفار خان ؤ ـ چې وروستو ئې دا جومات په کانگریس کښې ورگډ کړ ـ (۳) د سرخپوش تحریک یو غړے ـ

**سرخ ـــ اوسه**:ـ کامیاب ـ خوښ ـ

دنیـــا توره اخر مخ د سرې تو رکا
ته شراب د محبت وڅښه سرخ اوسه (خواجه محمد بنګش)

**ـــ روئي**:- د مخ سوُروالے ـ خوښي ـ
سرخ روئي ئې لکه ګل د بهار نشته
لکه پرګ څو د خزان ګونه زرد نۀ شي (سعيد خټک)

**ـــ زنبور**:- (ز+ن+بو+ر)(ف تر ـ اس ـ مذکر)سره مچۍ ـ ډنبره ـ ډانډاره ـ

**ـــ زنبوران**:-(ز+ن+بو+را+ن)(ف تر ـ اس ـ مذ) د سرخ زنبور جمع ـ په شاعرۍ کښې کنايه ـ په نکريزو سرۀ کړې د ګوتو سرونه ـ

**ـــ مو**:-(مُو)(ف تر ـ صف)د سرو ويښتو څښتن ـ

**سرخاب** :-(س+ُر+خا+ب)(ف ـ اس ـ مذ)(۱) (لفظي) سرې اوبۀ ـ (۲) مشهور ابي مارغۀ وائي چې ويو په نرماده کښې يو مړ شي نو بل هم ژوندے نۀ پاتې کېږي ـ (۲) سرۀ شراب ـ (۳) ګلګون ـ غازه ـ په مخ د لګولو سرۀ پوډر ـ (۵) وينه ـ

**سرخار** :- (س+ر+خا+ر)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)خادے ـ خاربست ـ ازغن (اغزه) لرګي خرانګي وغېره چې د دېوال د پاسه يا د پټونه چاپېره ږدي ـ

**سرخاره** :- (س+ر+خا+ر)(ف اس ـ مذ)د سرو زرو هغه ستن يا بکسوا چې زنانه پرې لوپټه ټينګوي ـ د سارې ستن يا بکسوا ـ

**سرخاکور** :-(س+ر+خا+کور) (اس ـ مع)د کوز يا خرپا والو ځانګه برهان خېل مهمند دي ـ (رستوګه ـ پنډيالی)

**سرخانه** :- (س+ر+خا+نَ)(ف ـ اس ـ مو) د موسيقۍ په اصطلاح کښې اوچت اواز ـ بم ـ

**سرخانۍ** :- (س+ر+خا+ن+ی)(ق ـ اس ـ مو)اصطبل ـ د اوښانو طويله ـ

**سرخاؤ** :- (س+ر+خا+ؤ)(وـــ څرخاؤ)

**سرخاوره** :-(س+ر+خا+و+ر)(اس ـ مو)سر وينځلو خاوره ـ سر ختيه ـ

**سرخچه** :- (س+ر+خ+چ)(ق ـ اس ـ مو)(۱) د زرد الو يا قسم چې سور رنګ او تر يو وي ـ (۲) غنمو يو قسم ـ

**سرِ خر** :- (س+رِ+خ+ر)(ف تر ـ اس ـ مذ) لفظي ـ د خر سر ـ مجازاً بدتميزه بېهوده سړې ته وئيلے شي ـ

**سرخرکه** :-(س+ر+خ+ر+ک)(ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ خرکې)
سرخکه ـ مشهوره مرغۍ ـ چې توره وي او سپين ټاکي لري ـ

**سرخس** :- (س+ر+خ+س)(ف ـ اس ـ مع)په افغانستان کښې د يو ښار نوم ـ

**سرخک** :- (س+ر+خ+ک)(ق ـ اس ـ مذ) يو قسم بوټے دے چې د پچس د پاره مستو سره خوړے شي ـ

**سرخکه** :- (س+ر+خ+ک)(اس ـ مو ـ ج ـ سرخکې)سرخکه ـ مشهوره مرغۍ چې تور رنګ لري چې پرسپين نري ټاکي وي ـ

ـــ:- (س+ر+خ+ک)(وـــ څرخکه)

**سرخکے** :- (س+ر+خ+کے)(اس ـ مذ ـ ج ـ سرخکي) (۱) يو قسم بوټے چې وېخ اوبشه ئې د رنګ د پاره پکارولے شي ـ (۲) د سپنو سر جوړولو څرخه ـ

ـــ:-(س+ر+خ+کے)(وـــ څرخکے)

**سرخند** :- (س+ر+خ+ن+د)(وـــ څرخند)

**سرخندوکے** :-(س+ر+خ+ن+دو+کے)(وـــ څرخندوکے)

**سرخنے** :- (س+ر+خ+نے)(اس ـ مذ ـ ج ـ سرخني)د کچړې وغېره په مينځ کښې هغه ډوغل يا کوغالے چې غوړي يا قرت پکښې اچوي ـ

**سرخود** :- (س+ر+خُ+د)(ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ خوده)خود سره ـ چې د بل په اختيار کښې نۀ وي ـ او پخپله خوښه او مخه کار کوي ـ

**سرخوړلے** :- (س+ر+خ+و+ړ+لے)(اس ـ مف ـ ج ـ لي)(۱) هغه کس چې سر ئې خوړلے وي ـ هلاک شوے ـ (۲) تکيه کلام په طور هم استعمالېږي خصوصاً چې د څۀ څيز نوم د چانه هېر شي نو وئيلے شي ـ (۳) د مينې يا د طنز په طور هم د بل سړي د پاره استعمالېږي ـ (۴) د چانه د نفرت د اظهار د پاره وئيلے شي ـ (۵) چې د څۀ څيز نوم د چا هېر شي نو وائي ـ

**سرخوږے** :-(س+ر+خو+ګے/ږے)(اس ص ـ مذ)(۱) داسې کار چې د سړي سر پرې درد راواخلي ـ ناخوښه کار ـ لکه:زما نه دا سر خوږے نۀ کېږي ـ (۲) د ډېر تکليف يا بحث مباحثې کار ـ

**سرخوږي** :-(س+ر+خو+ګي/ږي)(اس ـ مو)سر خوږے ـ سر خوږونه ـ عبث خواري ـ بې نتيجې محنت لکه: داسرخوږي ده ـ

**سرخوش** :-(س+ر+خ+ش)(ف ـ ص) (۱) مستانه ـ خوشحاله ـ (۲) هغه سړے چې د شرابو نشه کښې صرف خوشحاله او مسرورد وي ـ په سخته نشه کښې نه وي د شرابو د نشې په څلورو درجو کښې لاندينۍ درجه ده ـ ددې د پاسه نورې درجې دادي ـ تر دماغ (۳) سيه مست او ـ (۴) اخراب ـ

**سرخوشي** :-(س+ر+خُ+شي)(ف تر ـ اس ـ مو)د شرابو د کمې درجې نشه ـ سرور ـ خوشحالي ـ نيم مستي ـ د اعتدال نشه ـ

**سرخول** :-(س+ر+خو+ل)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د ټوپۍ وغېره برنے سر ـ چې بامره (ق) هم ورته وائي ـ

ـــ:- (س+ر+و+ل)(مص ـ مت)(وـــ څرخول)

**سرخوله** :-(س+ر+خو+ل)(ق ـ اس ـ مو) (وـــ سرخول)

**سرخه** :- (س+ر+خ)(ع ـ اس)لوړپ اونه ـ لويه ونه ـ

ـــ:-(س+ر+خ)(اس ـ مو)(وـــ (څرخه)

**سرخے** :- (س+ر+خے)(اس ـ مذ)(وـــ څرخے)

**سرخي** :- (س+ُر+خي)(ف ـ اس ـ مو ـ ج ـ ئ ـ يا ـ انې)(۱) سوروالے ـ سور رنګ ـ (۲) سره سياهي ـ (۳) د خط يا د مضمون عنوان ـ د خبر عنوان ـ (۴) هغه د سور رنګ مومي قلم چې ښځې پرې شونډې سرې کوي ـ (۵) سرۀ ګلګون پوډر ـ چې زنانه ئې په مخ او بارخوګانو لګوي ـ (۶) مېده کړې خښتې ـ چې د ښکلا د پاره د باغونو يا د کور په رشونو خورولے شي ـ (۷) هغه زردي چې د غلې يا د فصل په سر پيدا کېږي او تمله يا فصل خرابوي ـ زرېه ـ

**سُرخي ـــ قائمول**:-د مضمون يا د اخبار د لوئې خبرې د پاره څۀ عنوان غوره کول يا ليکل ـ

**سرخېدل** :- (س+ر+خي+د+ل)(مص ـ مو) (وـــ څرخېدل)
تل لکه اغـزے په ما سر خېږې اے رقيبه
هېڅ ونـــۀ شوه د عـــاشق د زړۀ سبيل (خواجه محمد بنګش)

**سرخېل** :- (س+ر+خي+ل)(پ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان) (مـــو ـ خپلـــه ـ ج ـ خپلې)(۱) د خپل سر يا مشر ـ د قوم مشر سردار ـ د قبيلې سردار ـ (۲) د کومې خاص ډلې ، مشر ـ

**سرد** :- (س+ر+د)(ف ـ صف)يخ ـ سوړ ـ

**ـــ بازاري**:- (با+زا+ري)(ف تر ـ مو)د بازار سړېدنه ـ د کوم څيز په بازار کښې نۀ خرڅېدنه ـ د څۀ څيز غوښتنه نۀ پاتې کېدل ـ

**سرداب** :- (س+ر+دا+ب)

**سردابه** :- (دا+ب)(ف تر ـ اس)سرد خانه ـ ته خانه ـ

**سردار** :- (س+ر+دا+ر)(ف ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان ـ مؤ ـ داره ـ ج ـ دارې)(۱) مشر ـ د قوم يا د خېل يا کومې ډلې مشر ـ پېشوا ـ رئيس ـ (۲) د پښتنو نارينه نوم ـ (د زنانۀ نوم سرداره راځي)(۳) سر لرونکے ـ

تن ئې پاتې شي بې سره ،سر ئې لاړ شي
سردار کلـــــه دے سردار د دې دنيا (رحمان)

**ــــ کول**:۔ مشر کول ۔ د قام يا قبيلې مشر ۔ جوړول مشري ورکول ۔

**سردارــــ کېدل**:۔ مشر کېدل ۔ پېشوا کېدل د قام قبيلې وغېره مشر کېدل ۔

**دـــــ اَعـلىٰ نشـان**:۔ (آ+ع+لا+ن+شا+ن)(اس ۔ مـذ ۔ ج ۔ ونـه)د افغانسـتان د مملکت يو خطاب ۔

**دــــ عـالي شـان**:۔ (عا+لي+شا+ن)(اس ۔ مـذ ۔ ح ۔ ونه)پـه افغانسـتان کښـې د اوچتې درجې يو خطاب ۔

**سردارو** :- (س+ر+دا+رو)(پ تر ۔ اس ۔ جم)د سردارو ۔ مجازاً پاره ۔ سيماب

**سرداري** :- (س+ر+دا+ري)(اس ۔ مو)مشري ۔ د يو قـام خېـل يـا د کـومې خـاص ډلې مشري ۔ پېشوا ۔ مشرتوب ۔ مشر تابهٔ۔

له سردار يو څو شي کناره اوسه
دغـــــه هوس به په زړهٔ نادان کا (سعيد خټک)

**ــــ تماچه**:۔ خاص ارتې تماچه غټ کار توس پکښې استعمالېږي ۔ ۵۰۵۰ بـور ريوالور۔

**ــــ کول**:۔(مص تر) مشري کول ۔ سردار جوړېدل ۔

**ــــ نظام**:۔ د حکومت کولو يو خاص نظام په کوم کښې چې پـه اولس ځـان لـه يو سردار مقرر کړو ۔ بيا به دغې سردار پـه خپلـو خلقو حکومت کـاوهٔ ۔ خو وروستو چې دا موروژی شه نو دا نظام سرمايه دار نه نظام کښې بـدل شـهٔ ۔ زمونږ پـه هېـواد کښـې دا نظـام پـه بلوچسـتان کښـې د پيرنگيـانو پـه دور کښې روان وو ۔

**سرداري خېل** :- (س+ر+دا+ري+خېل)(اس ۔ مع) د پيرداد خېلو يا څانگـه ده چې (د عبدالرحمان خېل د شېر خېـل د هېبت خېـل د نانا خېـل د بهلولـو زئ) د محسود دي ۔

**سرِ دربار** :-(س+ر+ے+د+ر+با+ر) (ف تر ۔ صف)پـه ډک دربـار کښـې د دربـار خلقو په مخکښې ۔ ښکاره ۔

**سردرد** :- (س+ر+د+ر+د)(اس صف ۔ مذ)د سر درد ۔ سر خوږے ۔

ماشے د نمرود په سر مېشته شو څخڅوکاله
بعض لـــه غـــــرور ئـې وُ رنځ د سر دردونه (حافظ)

**سردره** :- (س+ر+د+ر)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ درې) د غرونـو پـه مينـځ کښـې تنگـه مېداني علاقه۔

ځـــه هغه شهباز شه چې دې ځاے په سردرو دے
نـــهٔ لکـــــــه د کلـي کارغهٔ گرځـــه غم د نس کا (خوشحال)

**سردري** :- (س+ر+د+ري)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ ئ)د دروازې د چوکاټ لرنے لرگے

**سردريا** :- (س+ر+د+ر+يا)(اس ۔ مـع)د ترکسـتان د علاقـې مشـهور سـيند د سيحون درياب ۔

**سردرياب** :-(س+ر+د+ر+يا+ب)(اس ۔ مع)د سوات سيند چې د هشـنغر علاقـې ته راورسي نو بيا د سردرياب په نوم بللے شي۔

**سردړے** :-(س+ر+د+ړ+دے)(پ تر ۔ اس ۔ مذ)د سر درد ۔ د سرخوږېدنه

**سردړدي** :- (س+ر+د+ړ+دي)(ف تر ۔ اس ۔ مو)(۱) سر خوږے د سر درد (۲) تکليف ۔ مشقت ۔

**سرِدست** :- (س+رِ+د+س+ت)(۱) هم په دې وخت ۔ فوراً ۔ في الحال ۔ سمدستي ۔ (۲) په موجوده وخت کښې ۔ په حاضر وخت کښې ۔

**سر دفتر** :- (س+ر+د+ف+ت+ر)(ف تر ۔ اس ۔ مذ ۔ مو ۔ دفتره) د دفتر مشر ۔ د دفتر حاکم ۔ مشر بابو ۔ هېډ کلرک ۔ سپر ډنټ ۔ د دفتر لوے افسر ۔ د دفتر نگران ۔

**سردم** :- (س+ر+د+م)(اس ۔ مذ)هغه لرگے يا خاص الـه چې د جولاگـانو پـه سـتنه کښې لگېدلې وي ۔

**سرد مهر** :- (س+ر+د+م+ه+ر)(ف تر ۔ صف ۔ مو ۔ مهره)هغـه کـس چې مهربـاني يا رحم نهٔ لري بې رحمه ۔ ناترسه ۔ بې مروته ۔ بې مينې ۔

**سرد مهري** :- (س+ر+د+م+ه+ري)(ف تر ۔ اس ۔ مو) په سلوک کښـې نامهربـاني ۔ ناترسي ۔ بې مروتي ۔ بې مينتوب ۔

**سردرگم** :- (ف تر)حېران ۔ پرېشان ۔ فکر مند ۔ (ق) هوک ۔

**سرد سېر** :- (س+ر+د+سې+ر)(ف ۔ اس ۔ صف) هغه ملک د کوم اب وهـوا چې يخ وي ۔ يخ ملک ۔

**سرده** :- (س+ر+د)(ف ۔ اس ۔ مذ)(۱) د شابخورو د مجلس مشر (۲) سـاقي ۔ شراب څښکونکے ۔

**ــــ**:۔(س+ر+د)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ سردې)مشهوره مېوه ۔ د خربوزې يو قسم ۔

**ــــ**:۔(س+ر+د)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ سردر) د غرئيزو هوسو يو قسم ۔

**سردی** :- (س+ر+د+ئ)(ف ۔ صف)د سردې په شان رنگ ۔ شين بخن زېړ رنگ ۔

**سردي خېل** :- (س+ر+دي+خېل)(اس ۔ مع)د بقا خېلـو يـو څانگـه ده چې (دولـې خېل د اتمانزئ د درويش خېل) وزير دي۔ بيا کبي او برمي خېـل او برمـي خېل د سردي خېلو څانگې دي ۔ استوگنه ۔ بنو ۔ شاول ۔

**سرډوب** :- (س+ر+ډو+ب)(فپ تر ۔ ص) اوبهٔ د سر نه پورتـه کېـدل ۔ مجـازاً پـه څهٔ کار کښې محو ۔ په څهٔ کېفيت کښې غرق ۔

**سرډوډي خېل** :- (س+ر+ډو+ډي+خېل)(اس ۔ مع)د ډوډي خېلو يـو څانگـه ده چې (د قندهار خان خېل دهاتي خېل د احمدزئ د درويش خېل) وزير دي ۔ (استوگنه ۔ بنو)

**سرِراه** :- (س+ر+را+ه)(ف تر ۔ اس)(۱) د لارې په سر ۔ په لار کښې (۲) اتفاقي ۔ (ملاوېدل)

**سرِرشته** :- (س+ر+ش+ت)(ف تر ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ رشتې)(۱) د پړي يـا د مـزي سر (۲) محکمه ۔ (لکه سر رشته تعليم)(۳) د ستورو رواج ۔ (۴) تړون ۔ تعلق ۔ (عموماً سر شته وئيلے کېږي)(۵) نظم ۔ سنبالونه ۔

سر رشته د سر شنر يې ورسره نهٔ وي
بېهوده مـــرغه ضائع کا نه سېر شنار (خوشحال)

**ــــ دار**:۔(س+ر+ز+د)(ف ۔ ص)(۱) سر وهلے ۔ (۲) ملائمه ۔ (۳) بې خبره ۔

**سرزگے** :- (س+ر+ز+گے)(ق اس ۔ مـذ ۔ ج ۔ گي)هغـه څرمن چې د بوتـل وغېـره لوښي سر پر ترلے شي ۔

**سر زلف** :- (س+ر+ز+ل+ف)(ف تر ۔ اس ۔ مذ)(۱) د زلف سر (۲) معشـوقانه زور عتاب ۔ (۳) ناز ۔ نخره ۔ غمزه ۔ (۴) بې پروائي ۔ استغناء ۔

**سرزنش** :- (س+ر+ز+ن+ش) (ف تر ۔ مذ) سزا ۔ تنبه ۔ بدرد ۔ ملامته ۔

**ــــ کول**:۔ (سپکه) سزا ورکول ۔ تنبيه ورکول ۔ بد رد وئيل ۔ ملامته کول ۔

**ــــ موندل**:۔ (سپکه) سزا موندل ۔ تنبيه کېدل ۔ بد رد اورېدل ۔

**سرزمين** :- (س+ر+ز+مي+ن)(ف ۔ اس) ملک ۔ ولايت ۔ خطر ۔ هېواد ۔

**سرزني** :- (س+ر+ز+ني)(ف تر ۔ اس ۔ مو ۔ زنې) سر وهنه ۔ کوښښ ۔ سعي

**سرزوره** :- (س+ر+زو+ر)(فپ تر ۔ ص)(۱) سرکښ ۔ حکم نهٔ منـونکے ۔ ضـدي سرټنبه ۔ (۲) خپله رضا کوونکے ۔

**سرزوري** :- (س+ر+زو+ري) (تب تر ۔ اس مو ۔ ج ئ)(۱) سرکښي ۔ نافرماني ۔ (۲) ضد ۔ په خپل ضد کښې خپله خوښه کونه ۔

**سرزوړه** :-(س+ر+ز+و+ړ)(پ تر ۔ مو ۔ ج ۔ زوړے)سر په ښکته ۔ سر په زوړې۔

**سرزوړے** :-(س+ر+ز+و+ړے)(و--- سرځوړے)

**سرزيړے** :- (س+ر+زي+ړے)(فپ تر - مذ - ج - زيړي)هغه غوږ چې انګولي د پاسه ډېر لږ ښکارېږي -

**سرژه** :- (س+ر+ژ)(اس - مو)(و--- سرړه)

**سرړه** :- (س+ر+ګ/ړ)(اس - مو) (۱) د غرۀ چېلے - د غرۀ پسۀ -

زرکـــه دې لرې له بازه ګرځي
سرړه دې لرې له پړانګه غورځي (خوشحال)

مجازاً - طاقتوره او سرکښه ښځه -

**سرسام** :- (س+ر+سا+م)(اس - مع - مذ)د سر پړسوب د يو مرض نوم چې په کښې په سر کښې پړسوب پېدا شي - او د نمر (نور) په رڼا کښې د سخت سر خوږې تکليف وي -

**ـــ راتلل په چا**:- رېږندے راتلل - وېرے اخستل چې زۀ ئې اوليدم نو سر سام پرې راغے

**سرسامول** :-(س+ر+سا+م+و+ل)(مص - مت)سر سام کول - مجازاً لېونے کول - لکه :پخپله سر سامه دے مونږ هم د ځان سره سر ساموي -

**سرسامه** :- (س+ر+سا+م)(صف) هغه چې سر سام شوے وي - مجازاً لېونے

**سرساهي** :- (س+ر+سا+هي)(ه - مو)د زمکې د کچ کولو يو مېچ - (عموماً شر شاهي ويلے کېږي)

**سرسايه** :- (س+ر+سا+ي)(فپ تر - مو - ج - سايے)د وړوکي اختر په موقع ورکېدونکے - صدقه - د فطر صدقه)

نۀ ئې نمونځ د جنازې نۀ ئې امام شته
نـــۀ زکـوٰة نـۀ سرسايه نۀ د زړۀ تراه (خوشحال)

**ـــ ورکول**:- د وړوکي اختر په موقع د اختر صدقه ورکول -

**سرسبز** :- (س+ر+س+ب+ز)(ف تر - صف)(۱) شين (بوټي ونه فصل وغېره)(۲) تر و تازه - (۳) اباد - ښېرازه - (۴) خـوش خوشـحاله (۵) کاميـاب - (۶) شته مند - (۷) اولاد واله - د بال بچ خاوند -

**سرسبزه** :- (س+ر+س+ب+ز)(ف صف - مو - ج - زې)هغه زمکه چې شنۀ يا ګيا بوټي پکښې زرغون شوے وي - لکه سر سبزه زمکه يا علاقه -

**ـــ کول**:- شنۀ کول - يو زمکه شنه زرغونه کول - په زمکه باندې ګياه او بوټي وغېره زرغونېدل -

**سرسجده** :-(س+ر+س+ج+د) (ف تر -اس - مذ) هغه مهره چې شيعه ګان ئې د سجدې په ځاے کېږدي -

**سرسر** :- (س+ر+س+ر)(ص)(۱) د مائع (بهېدونکو) څيزونه په سر يا په پورتنۍ سطح - مثلاً د انګولي سر سر اچول يعني د انګولي د سر د پاسه غوړه حصه اچول - (۲) د غلے اوړو وغېره د سر حصه -

**ـــ کول**:- د څۀ ميده څيز نه په دواړو لاسونو څۀ سخت څيزونه لرې کول -(ق)

**ـــ کېدل**:- د کوم ميده څيز نه په لاسونو سره سخت څيزونه لرې کول - (ق)

**سُر سُر**:-(س+ر+س+ر) (اسي صورت) په زمکه د خوئېدونکي حشرې د کشېدو اواز -

**ـــ کېدل**:- (۱) د حشرے د خوئېدو نرے اواز پېدا کېدل - (۲) نرے اواز (چې عموماً ورسره حرکت هم محسوسېږي)

**سُرسراشاهي** :- (سُ+ر+س+ر+ما+شا+هي)(اس - مع)د خلي خېلو يو څانګه ده - چې شمن خېل محسود دي -

**سرسره** :- (س+ر+س+ر)(اس - مو - ج - سرسرې) هغـه ښـکلے تېـر سـرے چې د واده په وخت د اوبۀ د پاره ورکولے شي -

**سرسرے** :- (س+ر+س+رے)(ق - اس - مذ جم) يو قسم ګياه بوټي چې نرمه او بې ازغو (اغزو) - چې نرۍ او اوږدې څانګې لري - د ځاروو خوراک دے -

**سُرسُري** :- (س+ر+س+ر+ي)(اس - مو)د اتشبازۍ يو څيز - چې د ګوتې په شان نرے او د ګوتې نه لږ زيات اوږد وي - چُرچُري -

**سرسري** :- (س+ر+س+ري)(ف - ص)بغېر د څۀ سوچ فکر نه - چې ډېر لټون پکښې نۀ وي شوے -

**ـــ تحقيقات**:- (ت+ح+قي+قا+ت)(ف تر - اس - ج)مجمل تحقيق - چې ډېر لټون او ګواهي پکښې نه وي اخستې شوې -

**ـــ خبره**:-(خ+ب+ر)(فپ تر - مو - ج - خبرې)مختصر خبره - چې ډېر تفصيل نۀ لري

**ـــ عدالت**:- (ع+دا+ل+ت)(ف تر - مذ - ج - ونه)هغه عدالت چې په مقدمه کښې ژور (جور) تحقيق نۀ کوي - يعني ګواهان وغېره نۀ اخلي -

**ـــ نظر**:-(ن+ظ+ر)(ف تر - مذ)يو څيز ته په ډېر غـور نۀ کتـل بې غـورۍ سره يو نظر -

**ـــ نظر اچول**:- په معمولي نظر کتل - يو خويـا تـل نظر اچول - د ژورې توجه نۀ بغېر کتل -

**سرسلسله** :-(س+ر+س+ل+س+ل)(ف تر - اس - مذ)
د سلسلې سر - مجازاً د يو خان غورنيکۀ - ديو خاندان يا خېل وغېره - نيکۀ چې ددغې خاندان يا خېل باني وي -

**سر سمبورے** :- (س+ر+م+بو+رے)(ق - ص)سُورے - سُورے -

**ـــ کول**:- (ق) سورے سُورے کول - سرے سرے کول -

**ـــ کېدل**:- سورے سورے کېدل - سرے سرے کېدل -

**سرسوبله** :- (س+ر+سو+ب+ل+په(ګن)(اس - مو - ج -بلې)زنځه - هزارپا -

**سرسوبنده** :- (س+ر+سو+ب+ن+د)(اس - مو - ج - بندې)د زنځې يو قسم دے - سر سوبا -

**سرسه** :- (س+ر+س)(اس - مع)د تنـا يو ښـاخ دے چې بيټ د سرسه څـانګې دادي - ترن خېل باؤله خېل - جلال خېل ونو خېل -

**سرسيانده** :- (س+ر+س+يا+ن+د)(ص - مو - ج -سياندې) سراسيمه - حېران و پرېشان -

**سرسيانده کيدل** :- حېران و پرېشان کېدل -سراسمه کېدل -

**سرسيرن** :- (س+ر+سي+ر+ن)(اس - ظرف)بر سيرن - سربېرن د مخې سر دستي څيز

**سرسيرنه** :-(س+ر+سي+ر+ن)(پ - صف)عارضي - سرسري -

**سر سيره** :- (س+ر+سي+ر) (اس - مو - ج - سپرلے) د زنانۀ يو کالے - چې په تندي ئې زوړند وي -

**سرسپين** :- (س+ر+س+پي+ن) (ص - مذ - مو سيئني) سـر ګردانـه - سرسـميه - حېران - پرېشان -

**سرشار** :- (س+ر+شا+ر)(ف - ص)(۱) تـر جيـو پـورې ډک - ژۍ پـه ژۍ - (ق)(۲) مست په نشه کښې (عموماً د شرابو) سروټ -

**ـــ کېدل**:- په نشه کښې مستېدل -

**سرشته** :- (س+ر+ش+ت)(ف - اس -مو)(و--- سررشته)

**ـــ تعليم**:- (ف تر)د تعليم محکمه -

**سرشک** :- (س+ر+ش+ک)(ف - اس - مذ)اوښکه - اوښه -

**سرشکوونے** :- (س+ر+ش+ک+وو+نے)(ق پ تر - اس - مذ - ج -نې)
د هلکانو يوه لوبه چې يو لوبغاړے پکښې څۀ د لوبو څيز لري وغورځوي نور

لوبغاړي ورپسې منډې کړي - چې څوک اول ورسي او راواخلي - نو نور هلکان د هغهٔ وېښتهٔ شوکوي او غوړونه ئې راکاږي خو هغه کوښښ کوي چې دغه څيز غورځوونکي لوبغاړي ته راورسوي - چې کامياب شي - نو دغه څيز وګټي -(پ ق)

**ـــ کول**:- د سرشووني لوبه کول - د تشريح د پاره وګوره - سرشکوونے -

**سرشماري** :-(س+ر+ش+ما+ري)(ف تر - مو - ج - شماري)
د سرونو شمېر - مردم شماري - سر شمېر - د کسانو شماري -

**سرشوداکی** :- (س+ر+شو+د+يا+ک+ئ)(اس - مع)د د شوداکئ يو څانګه ده (د بومي خېل د نصردين خېل د کالو خېل د احمدزئ درويش خېل) وزير دي - (په بله شجره کښې د بومي خېلو په اولاد د شوداکئ نوم شته - ددې په ځائے ئې دا نومونه ورکړي دي -
زلي خېل - توجيا خېل - ګنګي خېل - او علي خېل)

**سرشوکارے** :- (س+ر+شو+کا+رے)(ق - اس)(وـــ سرشکوونے)

**سرشوکانے** :- (شو+کا+ن+ړے)(ق - اس)(وـــ سرشکوونے)

**سرشوئے** :- (س+ر+شو+ئے) (ف تر - اس - مذ) (۱) سر وينځونکے - نائي - (۲) يو قسم خاوره چې سر پرې وينځلے کېږي -

**سرشير** :- (س+ر+شي+ر)(ف تر - اس - مذ)د زمري د سر په شان جوړه شوے پخه پرناله - پخوا ددې ډېر رواج ؤ - "شېر دهان" هم ورته وائي-

**سرښته** :- (س+ر+خ/ش+ت)(وـــ سرشته)

**سرطان** :- (س+ر+طا+ن)(ع - اس - مذ) (۱) کوني کبر - د اوبو يو چينجے چې وراندې د لړم په شان پنجې لري - خو لکۍ ئې نهٔ وي - خيني خلق دغه چينجے او اوبهٔ چې دغه چينجي پکښې ډېر وي د سرطان د مرض د پاره قسم علاج ګڼي - (۲) يو قسم پټه تنکۍ - چې تر اوسه ئې لاځه يقيني علاج نه دے معلوم کړے شوے - (۳) د اسمان څلورم برج - (۴) د څاروو يو مرض نوم -

**سرطبلدار** :- (س+ر+ط+ب+ل+دا+ر)(ف تر - اس - مذ)د کتاب داسې جلد (کانتيې) چې د ګس طرف جلد لړ لوے وي - او په کتاب راواوړلے شي - لکه پخوا به د قران مجيد جلدونو وو - بيني دار جلد -

**سرطبيب** :- (س+ر+ط+بي+ب)لوے طبيب - سول سرجن -

**سرعت انزال** :- (س+ر+ع+ت+ا+ن+زا+ل)عف تر - مذ کر)د سړو د يوې بيمارۍ نوم - چې پکښې د سړي انزال (د مني خارجېدل) د عام وخت نه زور وشي -

**سرعسکر** :-(س+ر+ع+س+ک+ر)(ف تر - مذ - ج - ان) د لښکر مشر - سپه سالار - کمانډر ان چيف - لوی مشر -

**سرعشر** :- (س+ر+ع+ش+ر) (عف تر - اس - مذ)هغه لس ايتونه چې د ماشوم د سبق د بسم الله په وخت ليکلي ورکړے شي -

**سرغ** :- (س+ر+غ)(اس - مذ - ج - ونه) زين (د سرج بدل شکل)

**سرغاړے** :- (س+ر+غا+ړے)(ف پ تر - اس - مذ - ج - سرغاړي)(۱) سر غړوونکے - سرکښ - حکم نهٔ منونکے - (۲) د څهٔ څيز ډېر په تنګ راغلے پوزې له راغلے -

**ـــ کول**:- (۱) سر غړول - حکم نهٔ منل - سرکښ کول - (۲) ډېر زيات - تنګول - پوزې له راوستل -

**ـــ کيدل**:- (مص - تر)(۱) نافرمانه کېدل - سرکښ کېدل - (۲) ډېر زيات تنګېدل - پوزې له راتلل -

**سرغاړي** :- (س+ر+غا+ړي)(ق - اس - مو - ج - ئ)قتل - خون - وژنه -

**ـــ سره کول**:-په خپله کښې قتل او خون کول - مرګ ژوبله کول -

**سرغټ مشر** :- (س+ر+غ+ټ+م+ش+ر)(ق - اس - تر - ج - مشران)سپه سالار - د لښکر لوے مشر -

**سرغړے** :- (س+ر+غ+ړے)(اس - مذ - ج - ي) سر ځار - وېړه - هغه څوکے واله او اغزن لرګي چې د دېوال د سر د پاسه لګولے شي -

**سرغړاندے** :- (س+ر+غ+ړا+ن+د+ے)(اس تر - مذ - ج - غړاندي) سر غړوونکے - حکم نهٔ منونکے - باغي - نافرمانه -

**ـــ کېدل**:- (مص تر)باغي کېدل - نافرمانه کېدل - نافرماني کول - حکم نهٔ منل

**سرغړنه** :- (س+ر+غ+ړ+ن)(حمص)د سر غړونه - حکم نهٔ منل - باغي کېدنه

**سرغړے** :- (س+ر+غ+ړے)(اس - مذ - ج - غړي)(۱) د څهٔ څيز په وجه ډېر زيات په تنګ راتلل - د څهٔ څيز په وجه ساه پوزې له راتلل -(ق) (۲) سر غړونه - نافرماني - سرکښي -

**سرغزل** :- (س+ر+غ+ز+ل)(ف تر - اس - مذ)(۱) د غزل سر - د غزل اولنے شعر - مطلع - (۲) په ديوان کښې د ټولو نه غوره غزل -

**سرغزے** :- (س+ر+غ+زے)(اس - مذ - ج - ي)د غز د ونې يو قسم چې په ښوره زمکه کښې کېږي-

**سرغشے** :- (س+ر+غ+شے)(اس - مذ - ج - غشي)(۱) د نل يو قسم دے چې په مينځ کښې ډک وي - سر غشے -(۲) د ببت يو قسم - (ق)

**سرغلي** :- (س+ر+غ+لي)(اس - مع)د توريو په دوه قبيلو کښې وړه قبيله ده - ددې قبيلې ښاخونه دا دي - حمزه خېل - مستوخېل - چې دې دواړو کښې تقريباً نيم خلق کوچي دي او غلي خېل درست کوچيان دي

**سرغندوئے** :- (س+ر+غ+ن+دو+ئے)(وـــ سرغندے)

**سرغندے** :- (س+ر+غ+ن+د+ے)(اس تر - مذ - ج - ي)مشر - رهنما - فائده - ليډر - سرغنه -

**سرغنډوئے** :- (س+ر+غ+ن+ډو+ئے)(اس - صف - مذ)د ټولي سر - د ټولي مشر - سر حلقه

**سرغنډوي** :- (س+ر+غ+ن+ډ+وي)(ق - اس - مذ)د ګياه يو قسم دے -

**سرغنه** :- (س+ر+غ+ن)(پ تر - اس مذ)(۱) سردار سيّد - د ټولي مشر - (۲) د قام يا د قبيلې مشر -

**سرغوپه** :- (س+ر+غو+پ)(مص تر)(۱) په غوپه کښې غرق شوے - (۲) پټ - مخفي -

**ـــ کار کول**:-پټ پټ کار کول -

**ـــ کول**:- (مص تر)(۱) ډوبه ول - غرقه ول -(۲) پټه ول - مخفي کول -

**ـــ کېدل**:-(مص تر)(۱) ډوبېدل - په غوپه کښې غر قېدل(۲) پټېدل - مخفي کېدل -

**سرغوټه** :- (س+ر+غ+ټ)(مص تر) چې سرئې غوټه شوے وي - مجازاً پيچيده او سخت کار -

**ـــ کېدل**:- (مص تر)د څهٔ کار ګرانېدل - په کار کښې پېچيدګي پيدا کېدل -

**ـــ**:-(س+ر+غ+ټ)(اس - ته - مو) په لاټبو کښې سر د لاندې غوپه -

**ـــ کېدل**:- (مص تر)په لاټبو کښې داسې غوپه کېدل - چې سر ئې مخکښې يا لاندې وي -

**سرغوچ** :- (س+ر+غ+و+چ)(ق - اس - مذ)د تجارت خاص مهر -

**سرغوڅ** :- (س+ر+غ+(ت)+س)(ص تر - مذ - مو - غوڅه - ج - غوڅې) سر پرېکړے

**سرغوړ** :- (س+ر+غ+و+ړ)(ق - اس تر - مذ)د سر غوړولو تېل -

**سرغوړے** :- (س+ر+غ+و+ګے/ړے)(ق - اس - مذ)د کاهو (وغېره) سخت او

غټ پوستکے۔

**سرغونډ** :- (س+ر+غ+ن+ډ)(ق اس ۔ مذ ۔ مو ۔ غونډه)(۱) غونډ او ګول سر ۔
(۲) د هزارۍ د ګل بوټے ۔

**ــــ**:- (س+ر+غ+ن+ډ)(اس تر ۔ مذ) یو مرض چې پکښې مرۍ وپړسېږي

**سرغه** :- (س+ر+غ)(اس ۔ مو)شورو ۔ شورع ۔ پېل ۔ ابتداء ۔

**سرفتنه** :- (س+ر+ف+ت+ن)(ف تر ۔ مذ) د فتنې فساد سر یا جړه ۔ د فسادیونو یا باغیانو مشر ۔ د جګړو باني یا جړه ۔

**سرفراز** :- (س+ر+ف+را+ز) (ف تر ۔ ص ۔ مذ ۔ ج ۔ان ۔ مو ۔ ذازه ۔ ج ۔فرازے)
(۱) سر لوړ ۔ سربلند ۔ اوچت ۔(۲) د پښتنو نارينه نوم۔

ستا مجلس د خاص الخاصو سر فرازو
د رحمان په څېر نۀ مومي هر عام شمعې

**ــــ کېدل**:- سر لوړے کېدل ۔اوچت کیدل ۔ سر بلند کېدل۔

چې د فقر په غبار سرفراز نشته
د افسر منت لابد که وسلطان وړي (سعيد خټک)

**سرفرازي** :-(س+ر+ف+را+زي)لوړ والے ۔ سربلندي ۔ عزت ۔ افتخار ۔

**سرفه** :- (س+ر+ف) (پ ۔ اس ۔ مو)(و ــــ صرفه)

**ــــ**:-(س+ر+ف)(ف ۔ اس ۔ مو)ټوخے ۔

**ــــ**:-(سُ+ر+ف)(ع ۔ اس ۔ مو)یو وړوکے شان سور رنګے ۔ چینجے چې سر ئې تور وي دا چینجے د وړو وړو لرګو کورکے جوړ کړي ، پکښې ننوزي ۔ او هم هلته مړ شي ۔

**سرقطار** :- (س+ر+ق+طا+ر) (ف تر ۔ اس ۔ مذ) د اوښانو (یاد قچرو) په قطار کښې اولنے اوښ (یا قچر) وړاندې تلونکے اوښ (یاقچر وغېره)
سر کتار ۔ سرکښ ۔

**سرقول** :- (س+ر+قو+ل)(و ــــ سرکول)

**سرقومان دان** :- (س+ر+قو+ما+ن+دا+ن)(اس ۔ مذ ۔ج ۔ ان)په افغانستان کښې د فوج لويه عهده لوے کماندار ۔ لوے کمانډر ۔ سپه سالار ۔

**سرقوماندانيت** :- ( س+ر+قو+ما+ن+دا+ني+ي+ت)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)د لوے کماندار د عهدې کار ۔ د لوے کمانډر عهده ۔ سپه سالاري ۔

**سرقه** :- (س+ر+ق) (ع ۔ اس ۔ مو)غلا ۔

**ــــ بالجبر**:- (ب+ل+ج+ب+ر)(ع تر ۔ مو)د زبردستۍ غلا ۔ لوټ مار ۔ شوکه ۔ ډاکه

**سرقين** :- (س+ر+قي+ن)(ع ۔ اس ۔ مذ) سرګين ۔ غوشايه ۔

ګونګټ خوښ شۀ په سرقين کښې
د بـــــــورا پـــه ګـل نـظر! (حافظ)

**سرک** :- (س+ر+ک) (و ــــ څرک)

**ــــ**:-(س+ر+ک) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ سرکونه)سړک ۔ پخه لار ۔

**ــــ سازي**:-(سا+زي)(اس ۔ مو)سړک جوړونه ۔ پخه لار جوړونه ۔

**ــــ نيول**:- (مص تر)لار نيول ۔ لار اختيارول ۔ په لاره روانېدل ۔

**سرکار** :- ( س+ر+کا+ر)(ف ۔ تر ۔ مذ)(۱) حکومت ۔ بادشاهي ۔ سلطنت ۔
(۲) بادشاهي دربار ۔(۳) د چا بزرګي ستانه ۔ (۴) سربراه ۔ مشر ۔(۵) د عزت په طور مخاطب کولو په موقع استعمالېږي ۔ جناب ۔ حضور ۔

**ــــ به کارِ**:-(ب+کا+رے)هغه ډاک چټهۍ وغېره چې د حکومت د طرفه لېږلے شي ۔ په دې باندې سرکاري ټکټ لګولے شي ۔

**سرکاربي** :- (س+ر+کا+ر+بي)(اس ۔ مذ) د خدمت ګارانو مش ۔

**سرکاري** :- (س+ر+کا+ري)(اس ۔ ف ۔ صف)(۱) هغه کار یا څيز وغېره چې تعلق ئې حکومت سره وي ۔ (۲) د حکومت ملکيت ۔ د باچا ملکيت ۔

**ــــ خزانه**:- (خ+زا+ن)(ف تر ۔ اس ۔ ج ۔ نې)د حکومت خزانه ۔د باچا خزانه ۔

**ــــ خط کتابت**:- (خ+ط+ک+تا+ب+ت)د حکومت د طرفه ليکلي شوي خطونه او چټهۍ وغېره ۔

**ــــ کاغذ**:-(کا+غ+ذ)(ف تر ۔ اس ۔ مذ)اشتهام ۔ استهامپ ۔

**ــــ مال**:- (ما+ل)(ف تر ۔ اس ۔ مذ)د حکومت ملکيت ۔ د باچا ملکيت ۔

**ــــ ملازم**:- (مُ+لا+ز+م)(ف تر ۔ مذ ۔ ج ۔ ملازمان ۔ مو ۔ ملازمه) سـرکاري نوکر ۔ د حکومت نوکر ۔د بادشاه نوکر ۔

**سرکاڼے** :- (س+ر+کا+ن+ړے)(اس صف ۔ مذ ۔ ج ۔ سرکاڼي) سربراه ۔ مشر ۔

**سرکاڼي** :- (س+ر+کا+ن+ړي)(اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم چې د درانو يوه ذېلي څانګه ده ۔

**سرکاوته** :- (س+ر+کا+و+ت)(ص) سودائي ۔ لېون مزاجه ۔

**ــــ کېدل**:- سودائي کېدل ۔ د لېونتوب اثر پکښې پېدا کېدل ۔ لېون مزاجه کېدل

**سرکتار** :- (ق) (س+ر+ک+تا+ر)(و ــــ سرقطار)

**سرکټ** :- (س+ر+ک+ټ)(نګ ۔ اس ،مذ ج ۔ ونه)(۱) چکر ۔ (۲) د بجلۍ د تارونو نظام ۔

**ــــ هاؤس**:- (ها+وو+س)(انګ ۔ اس ۔ مذ) هغه بنګله یا عمارت چې پکښې ججان ايسارېږي ۔

**سرجڅے** :- (س+ر+ک+(ت)سے)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔کخي) د ګوګوشتکو يو قسم ۔ سره پوختکه (مروت)۔

**سرکخ** :- (س+ر+ک+خ)(و ــــ سرکښ)

**سرکرده** :- (س+ر+ک+ر+د)(ف تر ۔ اس ۔ مذ ۔ج ۔ ګان)(۱)مشر سردار۔
(۲) فسر

**سرکردګي** :- (س+ر+ک+ر+د+ګي)(ف ۔تر ۔ اس ۔ مو ۔ ج ۔ کردګۍ)(۱) مشري ۔ سرداري ۔ ليډري ۔(۲) حکمت ۔ اختيار ۔

**سرکړوڼي** :- (س+ر+ک+ړو+نې)(اس ۔ مو)سر کولو واله ښځه ۔ ډمه ۔ مشاطه ۔

**سرکړۍ** :- (س+ر+ک+ړ+ئ) (اس ۔ مو) سر حلقه ۔ حلقې یا د ټولي سر ۔

**سرکس** :- (س+ر+ک+س)(انګ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)هغه تماشه چې پکښې د بني ادمو د ورزش او زور او دځناور د کرتبونو او د مختلفو لوبو نمائش کولے شي ۔ د نمائش ځاے ۔

**سرکښ** :-(س+ر+ک+ش)(ف تر ۔ ص ۔ مذ ۔ ج ۔ ان ۔ مو ۔ کشه ۔ ج ۔کشې)
سر غړونکے ۔ حکم نه منونکے ۔ نافرمان ۔ سر تنبه ۔

**سرکښي** :- (س+ر+ک+شي)(اس ۔ مو ج ۔ کشۍ) سر غوړول ۔ حکم نۀ منل ۔نافرماني کول ۔سر غوړونه ۔

آزاد خان په سرکښۍ کښې څۀ سود بيا موند
دغـــــه حال د هـر پاغي اهل طغيان دے (حافظ)

**ــــ کول**:- (مص)(۱) سر غړول ۔ حکم نۀ منل ۔(۲) بغاوت کول ۔باغي کېدل ۔

**سرکښ** :- (س+ر+ک+خ/ش)(ص ۔ مذ ۔ ج ۔ ان ۔ مو ۔ کښه ۔ج ۔کښې)
(۱) سرکښ ۔ باغي ۔ سروز ۔ سرغړوونکے ۔ حکم نۀ منونکے ۔ نافرمانه ۔

امـــاره نفس مـــې سر کښ دے
په زيان خوښ په سود ناخوښ دے (حافظ)

(۲) درس ځل ۔(ق) (۳) د پټي د سر ابے اوږده حصه چېرته نه چې پټے اوبۀ کېږي ۔(ق)

**سر کښي** :- (س+ر+ک+خي/شي)(اس ۔ مو ج ۔ کښۍ) سرکښي ۔ سرغړونه ۔ حکم نۀ مننه ۔ بغاوت ۔

**ــــ کول**:-د حکم نه سر اړول ۔ نافرماني لکه دچا د فرمان څخه سر کښې کول ۔

**سرکل** :- (س+ر+ک+ل) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) دائره ـ حلقه ـ طوق ـ (۲) د چا افسر د انتظام د لاندې علاقه حلقه ـ (۳) اداره ـ جومات ـ تولے ـ

**سرکلے** :- (س+ر+ک+لے) (اس تر ـ مذ ـ ج ـ کلي) د سرخرئینه ـ د ماشوم پـه اول ځل سر خرئیل ـ

**ـــــ کول**:ـ د نوي زیږېدلي ماشوم په اول ځل سر خرئیل ـ

**سرکمند** :- (س+ر+ک+م+ن+د) (ق تر ـ اس ـ مذ) د ایران پخوانو بادشاهانو بـه د خپل اصطبل په دروازه کښې یو پړے ځان کړے ـ که چا خوني یا غـل بـه ځان دغې پړه ته ورسوو نو هغه له به امان ورکړے شۀ ـ

**سرکنده** :- (س+ر+ک+ن+د) (ق ـ ص) تېزه منډه چې دمه پکښې ونه کړے شي ـ بې د ایسارېدلو منډه په یو مخه منډه ـ

**سرکنده** :- تېردل ـ (ق ـ مص ـ تر) (دچانه) د ایسارېدلو په منډه تېردل ـ

**سرکندے** :- (س+ر+ک+ن+د ے) (ص ـ مذ) سر لک ـ ملاخ ـ معلق ـ

**سرکنډو** :- (س+ر+ک+ن+ډو) (ص) (وــــ سرکونډو)

**سرکنډۍ** :- (س+ر+ک+ن+ډ+ۍ) (ق ـ ص) هغه ښځه چې د وادۀ نه اول پلار کره کونډه شوې وي ـ (د کاف پېښ سره هم وائي)

**ـــــ کېدل**:ـ د وادۀ نه مخکښې د پلار په کور کونډه‌ېدل ـ

ـــــ :ـ (س+ر+ک+ن+ډ+ۍ) (اس ـ مو) (۱) هغـه ځـاے چې مسافر پکښې کېډه اچوي ـ سر منزل ـ مینه ـ (ق) (۲) بازیګر ـ

**ـــــ اړول**:ـ بازیګره اړول ـ سر په زمکه کښېښودل او اوښتل ـ لوټکے اړول ـ

ـــــ :ـ (س+ر+کُ+ن+ډ+ۍ) (اس ـ مو) هغـه جینـۍ چې نـوې پېغلـه شـوې وي ګـو تلکه ـ

**سرکنډے** :- (س+ر+ک+ن+ډ ے) (وــــسر کونډ ے)

**سرکیګن** :- (س+ر+ک+ګ+بي+ن) (ف تر ـ مذ) د سرکې او د شهدو نه جوړ شوے شربت ـ

**سرګني خېل** :- (س+ر+ک+ني+خېل) (اس ـ مع) دا رنګ شموزویو څانګه ـ (چې له اتمانزئ د) اتمان خېل دي ـ

**سرکوب** :- (س+ر+کو+ب) (ف تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان) (۱) سر ټکوونکے ـ پـه سر سر وهونکے ـ مجازاً ـ سر اورکونکے ـ (۲) محافظ ـ نګراني کوونکے ـ (۳) (ف) لائق ـ منتظم ـ سردار ـ (۴) دمدمه ـ

**سرکوبي** :- (س+ر+کو+بي) (ف تر ـ اس ـ مو ـ ج ـ کوبۍ) پـه سر سر وهنـه ـ مجازاً سزا ورکونه ـ تادیب ګوشمال ـ

**سرکوټ** :- (س+ر+کو+ټ) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د غلې وغېره هغه پېمانه چې پـه اول ځل د درمند یا د راشې نه واخستې شي ـ او ملاله ورکولے شي

**سرکودن** :- (س+ر+کو+د+ن) (اس ـ مذ) سر سام ـ مشهور مرض ـ

ـــــ :ـ س+ر+کو+د+ن) (اس ـ مذ ـ مو ـ سرکونه ـ ج ـ سرکودنے) کـم عقـل ـ غبـي ـ احمق

په خلیلو کښې سکښې پیدا کېږي
هغـه هـم بدې په خپلې سرکودنې (خوشحال)

ـــــ :ـ (س+ر+کو+د+ن) (اس تـر ـ مـذ ـ مـو ـ کودنـه ـ ج ـ کودنې) بـاتر یـا اوتـر ـ پرېشانه سرګردانه ـ

**سرکوزتوب** :- (س+ر+کو+ز+تو+ب) (۱) شرمندګي ـ خجالت ـ (۲) کم همتـي (۳) بد عملي ـ

**سرکوزے** :- (س+ر+کو+ز ے) (اس ـ مذ ـ ج ـ کوزي ـ مو ـ کوزې ـ ج ـ کوزانې) (۱) سور بد ـ ځناور ـ خنزیر ـ (۲) د کنځلو په طور هم بدلېږي ـ

**سرکوزي** :- (س+ر+کـو+زي) (اس ـ مـو ـ ج ـ ئ) سـر ښـکته کېدنـه ـ مجـازاً ـ شرمندګي ـ خجالت ـ

**سرکول** :- (س+ر+ک+و+ل) (مص مت) (وــــ څرکول)

ـــــ :ـ (س+ر+ک+و+ل) (ق ص) سر په ښکته ـ سرنګون ـ

**ـــــ اوښتل**:ـ (ق ـ مص ـ تر) سر پـه زمکـه کښېښـودل او اوښـتل بـازیګره اړول ـ سرګندي اړول لوټکے اړول ـ

**ـــــ درېدل**:ـ په سر ودرېدل ـ سر په زمکه لګول او پښې پورته کول ـ

**ـــــ کول**:ـ (ق ـ ص ـ تر) سر ټیټے اودرول ـ سر نګونه ودرول ـ

**ـــــ کېدل**:ـ سر په ښکته ودرېدل ـ سر نګونه ودریدل ـ

ـــــ :ـ (س+ر+کو+ل) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه بند یا پشته چې د اوبـو د سطحې د لوړولو د پاره جوړولے شي ـ

**ـــــ وهـل**:ـ اوبوتـه بنـد تـړل ـ چـې سـطحه ئـې اوچتـه وي ـ د اوبـو د سـطحې د اوچتولو د پاره بند یا پشته تړل ـ د بند په ذریعه د اوبو سطحه اوچتول ـ

ـــــ :ـ (س+ر+کو+ل) (ق ـ اس ـ ج ـ ونه) د چیلم سر ـ

**سرکولر** :- (س+ر+کو+ل+ر) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه سرکاري چټهۍ یـا حکم نامه چې په یو ځل ګڼو ماتحتو ادارو (لکـه سکولونو تـانو وغېـره) تـه لېږلې شي ـ ګشتۍ چیټهۍ ـ

**سرکومه** :- (س+ر+کو+م) (اس ـ مو ـ ـ کومې) د کاریز د کوهي بره سر ـ

**سرکونډو** :- (س+ر+کو+ن+ډو) (اس ـ مو) هغه جینۍ چې ایلـه پېغلـه شـوې وي او لاڼې وېښتۀ واړ وي او دلې شوې نۀ وي ـ سرکونډۍ ـ

**سرکونډي** :- (س+ر+کو+ن+ډ+ي) (اس ـ مو) چې سرکونډ ے ئې پرېښود وي ـ

ـــــ :ـ (س+ر+کو+ن+ډ+ۍ) (اس ـ مو) بازیګره ـ

**ـــــ وهل**:ـ سرکونډۍ اړول ـ بازیګره اړول ـ

**سرکونډے** :- (س+ر+کـو+ن+ډ ے) (اس ـ مـذ ـ ج ـ سرکونډي) (۱) د هلکـو (بلکـه د زمو) هغه وېښتۀ چې تندي د پاسـه د ښـکلا د پـاره سـاتلے شـوے وي ـ د ماشومانو د سر هغه وېښتۀ چې د منښتې په طور سـاتلے شـوے وي ـ (۳) د جینکو د تندي د پاسه وېښتۀ ـ

**سکونګ** :- (س+ر+کـو+ن+ګ) (اس ـ مـذ ـ ج ـ ان) یـوه مرغـۍ چې مـرۍ کښـې مختلف رنګونه لري ـ

**سرکوي** :- (س+ر+کو+ي) (ق ـ مذ) غوبل ـ

**سرکه** :- ( س+ر+ک) (اس ـ مـو) د انګـورو یـا د نـورو مېـوو یـا د ګنـو وغېـره د شیرې د خمیر کولو نه پس چې کومې سختې تروې اوبۀ جوړې کړے شي سرکه بللې شي ـ

**ـــــ پېشاني**:ـ (پې+شا+ني) (ف تر ـ صف) (وــــسرکه جبین)

**ـــــ جبین**:ـ (ج+بي+ن) (ف تر ـ صف) مجازاً هغـه سـړے چې تریـو تنـد ے ئـې نیولے وي ـ

**ـــــ فروش**:ـ (ف+رو+زو+ش) (ف تر ـ اس ـ مذ) (۱) لفظي سرکه ـ خرڅوونکے ـ (۲) هغه سړے چې تند ے ئې تریو نېولے وي ـ بوټ تندي واله ـ

**سرکۍ** :- (س+ر+ک+ۍ) (اس ـ مو) د میچ په شان یوه سره حشره ـ

**ـــــ شونډې**:ـ (شو+ن+ډ) (اس ـ جم) سرې شونډې ـ پـه پـانو یـا پـه سـور مـرم سـرې کړې شونډې ـ

**سرکي** :- مېږي ـ (اس ـ جم) سرۀ مېږي ـ د شکرې مېږتون ـ

**سرکے** :- (س+ر+کے) (اس ـ مذ) الو بولو ـ مشهوره مېوه ـ شفتالو ـ

**سرکي** :- (مو) سُ+ر+کي) (اس) سرخي ـ غازه ـ ـ (چې زنانه ئې په مخ لګوي)

**سرکي بانجڼ**:- (س+ر+کي+با+ن+ج+ن+ڼ) (ق ـ اس ـ مـذ) د غاښـونو ګوشـت خوره

**سرکي خېل** :- (س+ر+کي+خېل) اخېلو يوه څانگه ده - چې اسمعٰيل زئ اورکزئ دي-

ـــ:-(۱) (س+ر+کي+خېل)(اس - مع) د ميراخېلو څانگه ده چې (د مدخو خېل د خدر خېل د مهمت خېل د اتمان خېل د دروزېش خېل) وزير دي -

ـــ:-(۲) (ددغه)(اس مع)د شين خېلو يوه څانگه ده چې (احمد زئ د درويش خېل) وزير دي - بولاخېل بيا د سرکي خېلو څانگه ده -

ـــ:- (۳) (ددغه) (اس مع)د مده خېلو يوه څانگه ده چې (د ابراهيم خېل د اتمان زئ د درويش خېل) وزير دي - بيا د سرکي خېلو څانگې دي -

(۱) درې پلاري -(۲) علي خان خېل -

ـــ:-(۴) (ددغه)(اس مع)د طاس خېلو يوه څانگه ده چې (د سوکي خېل د محمد خېل د ملخ د ملي زاد) داوړ دي -

ـــ:-(۵) (ددغه) (اس مع)د گيتاخېلو يوه څانگه ده - چې (دمحمد خېل د ملخ د ملي زاد) داوړ دي -

**سرکېدل** :- (س+کې+د+ل)(وـــ څرکېدل)

**سرکي زئ** :- (س+ر+کي+ز+ئ)(اس مع)د دوتاني پاونده ؤ يوه قبيله ده -

**سرگا** :- (س+ر+گ+ا)(ق - اس - مذ)(۱) د زنانو څادر - پړونے - د اوړ -

(۲) يو عجيبه نقش چې په کند کنبې جوړولے شي -

**سرگزشت** :-(س+ر+گ+ز+ش+ت)(ف تر - مذ - ج - ونه)په سر تېرېدۀ - په سر تېر شوي حالات - خپل حالات يا سوانح - په خپل سر تېره شوې واقعه يا قصه -

**سرگران** :- (س+ر+گ+را+ن)(ف تر - صف)(۱) ناراضه - خفه - (۲) په قهر کنبې غضبناک - (۳) مغروره - کبر جن -

**سرگراني** :-(س+ر+گ+را+ني)(ف تر - اس - مو - ج - گرانې)(۱) د سر درنېدۀ - د سر درد سر خوږے - (۲) خفگان - ناراضگي - خفه کېدن -

**سرگرځے** :-(س+ر+گ+ر+(د)ز+ے)(اس - مذ)(وـــ سر گرځے)

**ســرگرځے** :-(س+ر+گ+ز+ے)(پ تر - اس - مذ) مرض دے چې په سرې سرچورلي -

**سرگرم** :-(س+ر+گ+ر+م)(ف تر - اس - صف) په څۀ کار کنبې تندي کوونکے - چست کوښښ او سعي کوونکے-

**سرگرمِ عمل** :- (س+ر+گ+ر+م+ع+م+ل)(ف تر - صف)د څۀ کار يا عمل کنبې چستي - تندي کوښښ او سعي -

ـــ **کېدل**:- په څۀ کار کنبې ، چستي، مستعدي،او تندي سره مشغولېدل -

**سرگرمي** :-(س+ر+گ+ر+مي)(ف تر - اس - مو - ج - گرمي)په څۀ کار کنبې چستي - تندي - کوښښ او سعي -

**سرگروه** :- (س+ر+گ+رو+ه)(فا تر - اس - مذ) د گروه يعني د ټولي يا جومات مشر سرغنه - سردار -

**سرگړدام** :-(س+ر+گ+ړ+دا+ن)(ص - مذ - مو - گړدانه) سرگردانه ، پريشانه ، او تر (د فارسي په شان "زے" سره سرگردان هم وائي -

ـــ **سرگړداني**:- (س+ر+گ+ړ+دا+ني) سر گرځېدنه - پريشاني -

ـــ **راتلل** (په چا):- (مص تر) سر گرځېدل - په چا - په پريشاني کنبې اختـه کېدل پريشانه کېدل -

**سرگړه خېل** :- (س+ر+گ+ړ+خېل)(اس مع)د علي خان خېلو يوه څانگه ده - چې (بومه خېل ، نصردين ، کالو خېل ، احمد زئ ، درويش خېل) وزيردي-

**سرگړے** :- (س+ر+گ+ړ+ے)(اس - مذ - ج - سرگړي)د عزيزے گياه يو قسم چې پسته او خوشبوداره وي - عموماً په جوماتونو کنبې په زمکه غوړولې شي - چې وچه شي نو ډېر زر او زر اخلي او لنبه کېږي -

**سرگړي کور** :- (س+ر+گ+رئ/ړئ+کور)(اس مع)د خدي خېلو يو څانگه ده - خوئے زي مهمند دي -

**سرگزان** :- (س+ر+گ+زا+ن)(اس - صف)ماغزن - مغزن - پوچ - ډېرې خرابې خبرې کوونکے-

**سرگشته** :- (س+ر+گ+ش+ت)(ف تر - صف)(۱) سرگردانه - حېرانه او پريشانه (۲) اواره - خوشے گرځېدونکے - لاز خطا -

ـــ **گرځېدل**:- حېرانه او پريشانه گرځېدل - لاز خطا گرځېدل -

سرگشته د ضلالت په ته کنبې گرځي
چې دښنه ئې د خسرانو يا د زوم دي (خوشحال)

**سرگشتگي** :- (س+ر+گ+ش+ت+گي)(ف تر - اس مو - ج - ي)(۱) سرگرداني - سرگرځېدنه - حېراني او پريشاني - (۲) اواره او خوشے گرځېدنه - (۳) افت - مصيبت -

**سرگل خېل** :- (س+ر+گ+ل+خېل)(اس مع)د پير وال خېلو څانگه ده - چې (تتر خېل يا اخروال، حسن خېل ، ادم خېل) افريدي دي -

په بل ځاے کنبې د سرگل خېل په ځاے گلين "کور"ليکلے دے -

**سرگله** :- (س+ر+گ+ل)(ق - اس - مو)د مال څارو وغېره محصول -

**سرگلے** :- (ق) س+ر+گ+لے)(اس - مذ)سبزي ده چې پخولے شي - سارمکې تانړوره - چيلو -

**سرگم** :- (س+ر+گ+م)(س - اس - مذ)(۱) د اووو سرونو مجموعه - (۲) د راگ سُر - (۳) د راگ د سرونو ليکلي شوي علامتونه -

ـــ:-(س+ر+گ+ُم)(ق تر - صف)هغه څيز يا کار چې د سر پته ئې نۀ لگي هغه کار چې نۀ ئې او سر معلوم وي نۀ اخر سر -

**سرگند / څرگند** :- (س+ر+گ+ن+د) (وـــ څرگند)

**سرگندول / څرگندول** :-(س+ر+گ+ن+د+و+ل)(وـــ څرگندول)

**سرگندون / څرگندون** :-(س+ر+گ+ن+دُو+ن) (وـــ څرگندون)

**سرگندونه/څرگندونه** :- (س+ر+گ+ن+د+ؤ+ن) (وـــ څرگندونه)

**سرگندوے (څرگندوے)** :-(س+ر+گ+ن+دو+ئے) (وـــ څرگندوے)

**سرگندېدل/ څرگندېدل** :- (س+ر+گ+ن+دې+د+ل) (وـــ څرگندېدنه)

**سرگنړے** :- (س+ر+گ+ن+ړے)(ق - اس - مز)يو قسم سخت بوټے - په غرئيزه زمکه کنبې کېږي - او اوږد ناړ لري -

**سرگن کور** :- (س+ر+گ+ن+کور)(اس مع)د اسماعيل خېلو يو وړوکې څانگه چې (د خدين خېل ، اسازي ، الياس زئ) بُنير وال دي -

**سرگنگس** :-(س+ر+گ+ن+گ+س)(صف - مز)بدحواسه - حېران پريشان -

**سرگومه** :- (س+ر+گو+م)(ص - مو - ج - گومې)(۱) بې هوشه - بغېر د څۀ حس او حرکته - (۲) هغه څيز چې سر ئې ورک وي - لکه سرگومه ماشوره -

ـــ **پربوتل**:- بېهوشه پرېوتل - بېهوشه کېدل - او اودۀ کېدل -

ـــ **کول**:- بېهوشه کول -

ـــ **کېدل**:- بېهوشه کېدل -

ـــ **ماشوره**:- (۱) هغه ماشوره چې سر ئې نۀ موندلې کېږي - (۲) وران شوے کار - چې درستي ئې گرانه وي - ورانه ماشوره -

**سرگه** :- (س+ر+گ) (وـــ څرگه)

ـــ:-(س+ر+گ) (وـــ سرړه)

ـــ :- (س+ر+گ) (ق - اس - مو - ج - سرگې)سور او نقش دارکند -

**سرګيجن** :-(س+ر+ګـې+ج+ن)(اس ـ مـز ـ مـو ـ سـر ګيجنـه ـ ج ـ سـر ګيجنې) هغـه سړے چې د ګوشت خوړے په مرض اختـه وي (او ددې مـرض پـه وجه ئې د خولې نه بوي راځي)۔

**سرګيچ** :- (س+ر+ګـې+چ)(مـز ـ مـو ـ سرګيچه ـ ج ـ سرګيچې)کنګس ـ بـد حواسه ـ حېران ـ پرېشان ـ ترهېدلے ـ

**سرګين** :- (س+ر+ګي+ن)(ف ـ اس ـ مز)(۱) سوټې ـ خصوصاً د غوا سوټې (۲) خاشرۀ ـ د هر څناور يا مرغۍ غل ـ(۳) سره ـ خاوره ـ

**ـــ الوده**:۔ په سوټې يا غوشي ککړ ـ خراب ـ

ربه تۀ ئې پاک استه کړې له زمينه
دا حافظ سرګين آلوده يوندانه دے

**ـــ کېدل**:۔ سره جوړېدل ـ خاورې کېدل ـ

**ـــ سول**:۔ (س+ر+ل)(وــــ څرل)

**سرلاټې** :-(س+ر+لا+ټ+ئ) (اس ـ مو) بازيګره ـ (سر په زمکه لګول او بيا نور وجود په سر اړول)

**ـــ خوړل**:۔ بازيګره اړول ـ لوټکې اړول ـ

**سرلاټے** :- (س+ر+لا+ټے)(اس ـ مز) سر کول ـ سر په ښېرې ـ سر لک ـ

**سر لانې** :-(س+ر+لا+ن+ړ+ي)(اس ـ مو) په سر بازيګره ـ سرګنډۍ ـ

**سرلک** :- (س+ر+ل+ک)سر په ښېرې ـ سر لاټے ـ

**ـــ کودنے**:سر په ښېرې ـ سر لاټے ـ

**سرلوحه** :- (س+ر+لو+ح)(۱) د قبر په سر لګېدلے هغه کاڼے چې د قبر سر ترېنه معلومېږي (۲) د قبر د سر کاڼے چې د مړي نوم وغېره پرې ليکلے شوے وي ـ (۳) د کتاب سر ورق ـ

**سرلوړ** :- (س+ر+لُ+ړ) سر لوے ـ سر بلند ـ سرفراز ـ

**سرلوړتيا** :- (س+ر+ل+و+ړ+ت+يا)(مو ـ ج ـ ګانې)سر لوړي ـ سربلندي ـ عزت ـ سر هسکتوب ـ سر لوړتوب ـ

**سرلوړوالے** :- (س+ر+ل+و+ړ+وا+لے)(وــــ سرلوړتيا)

**سرلوړه** :- (س+ر+ل+و+ړ) سر بلندي ـ سرهسکووالے ـ

**سر لوړے** :-(س+ر+لو+ړے)( پ تر ـ مز ـ ج ـ لوړي)سربلندي ـ عزت ـ افتخار ـ

**ـــــ سـرلوړے**:-(س+ر+ل+و+ړے)(ص ـ مـز ـ ج ـ لوړي)سـر هسـک لـرونکے ـ سربلند عزتمند ـ سرفرازه ـ هسک غړانګے ـ سر پورته لرونکے ـ

**ـــ کول**:چاله سر اوچتول ـ سربلند کول ـ سرفرازه کول عزت ورکول ـ لکه: زۀ دې په سيالونو کښې سر لوړے کړم ـ

**ـــ کېدل**:۔ سرفرازه کېدل ـ سربلند کېدل ـ عزت موندل ـ سرهسکېدل ـ لکه: فلانے په منصب سر لوړے شۀ ـ

**سر لوړي** :-(س+ر+ل+و+ړي)(اس ـ مو) سربلندي ـ سرفرازي ـ سرهسکتوب ـ عزت ـ فخر ـ افتخار ـ

**سرلوئي** :-(س+ر+لو+ئي)(اس ـ مو)غرور ـ تکبر ـ فخر ـ

**ـــ کول**:تکبر کول ـ غرور کول ـ

**سرلوے** :- (س+ر+لو+ے) (اس ـ مز)سر بلند ـ سرلوړ ـ سرفراز ـ

**سرلي** :-(س+ر+لي) (اس ـ مو ـ ج ـ ي)سورلي ـ سيارلي ـ

**سرم** :- (س+ر+م)(انګ ـ اس ـ مز)سيرم (Serum) هغـه مـاده چې د عـلاج د پـاره په وينه کښې داخلولې شي ـ

**سرما** :- (س+ر+ما)(ق ـ اس ـ مز)د ژمي (جمي) موسم ـ د يخنۍ موسم ـ

**سرمابي** :- (س+ر+ما+بي)(صف تر)د رانجو په شان تور رنګ ـ چې پکښې لږ شان اثر د ابي رنګ هم وي ـ د "سرمه" او "ابي" نه جوړ شوے لفظ دے ـ

**سرماتک** :- (س+ر+ما+ت+ک)(اس ـ صف)شاخوړے ـ هغـه سړے چې هيڅ ببحثه خلقو سره نښلي ـ سرماتوک ـ

**سرماتوک** :-(س+ر+ما+تو+ک)(پ تر ـ ص ـ مو ـ ماتوکه ـ ج ـ ماتوکې) (۱) سـرماتونه مجـازاً جنـګ جګـړه ـ جګـړن ـ سـرماتک(۲) د دېـوال سـر هوارول ـ يا غونډول ـ شړه موړه ـ

**سرماتے** :- (س+ر+ما+تے)(۱) د دېوال سر ليوؤل يا غونډول چې د باران اثر پرې نۀ کېږي ـ (۲) پـه تـول کښـې څۀ قدرې زياتوالے يـا درونـد والـے ـ (۳) (ق) د څپلې سوکه(څوکه) ـ

**سرماتي** :- (س+ر+ما+تي)(اس ـ مو ـ ج ـ ماتې)(۱) جنګ ـ جګړه ـ (۲) پـه تول کښې لږ شان زياتوالے ـ

**سرماشاهي** :- (س+ر+ما+شا+هي)(اس مع)د سليمکيو يو څانګه ـ چې(عبدل خېل، بوره خېل، مهمت خېل، اتمانزئ، دروېش خېل)وزير دي۔

**سرمال** :-(س+ر+ما+ل)(اس ـ مز ـ ج ـ ونه)د سر مال ـ سرمايه ـ پنګه ـ

**ـــ** :۔ (س+ر+ما+ل)(اس ـ مز)(۱) هغـه پړے تړلے شي ـ (۲) ډک ژۍ پـه ژۍ ـ (۳) په درمند کښې پاتې شوے بوس چې څۀ لږه ډېره غله هم پکښې پاتې وي ډانډاري ـ

**ـــ کول**:۔(۱) په درمند کښې پاتې شوي بـوس ـ چې لږه ډېره غله هم لري ـ بيا غوبل کول ـ(۲) سر ته سره ډکول ـ

**ـــ کېدل**:۔ په درمند کښې پـاتې شـوے بـوس (چې لږه ډېره غله پکښې پـاتې وي) بيا غوبل کېدل ـ

**سرمالول** :- (س+ر+مـا+ل+ؤ+ل) (مـص ـ مـت)(۱) پـه درمنـد کښـې پـاتې شـوي بوس چې لږه ډېره غله لم لري بيا غوبل کول ـ (۲) سر تر سره ډکول ـ

**سرمالونه** :-(س+ر+ما+ل+ؤ+ن)(حمص)د لوښې ژۍ په ژۍ ډکونه ـ

**سرمالوونکے** :- (س+ر+مـا+ل+وو+ن+کے)(اس ـ فـا ـ ج ـ کې)(۱) سـر پـه سـر ډکـه وونکے ـ د لوښې تـر ژيـو (جيـو) پـورې ډکوونکے ـ (۲) غوبـل شـوے بـوس (بيا) غوبل کوونکے ـ

**سرمالي**:- (س+ر+ما+لي)(ق ـ اس ـ ج ـ لۍ)تر ژبو ډکېدنه ـ لبرېز کېدنه ـ

**سرمالک** :- (س+ر+ما+ل+ک)(ف تر ـ اس ـ مز)د ماشومانو يوه لوبه ـ پټ پټاؤنې

**سرمامور** :- (س+ر+ما+مو+ر)(اس ـ مز ـ ج ـ ان)په افغانستان کښې لوے افسر ـ د يوې ادارې يا محکمې مشر لکه:د پوليسو سرمامور د پوليس لوے افسر ـ

**سـرماموريت** :- (س+ر+مـا+مو+ري+ي+ت)(اس ـ مـز ـ ج ـ ونـه) دسـرمامور ـ عهده يا ددغې عهدې کار ـ

**سـرمائ** :- (س+ر+مـا+ئ)(ف تـر ـ صـف) د سـرما سـره تعلـق لـرونکے ـ د ژمـي متعلق ـ هغه کور يا مقام چې د ژمي استوږنې له پکارېږي ـ

**سرمايه** :- (س+ر+ما+ي)(ف تر ـ مو ـ ج ـ مايې)اصل پنګه ـ مطابق پنګه ـ

سرمايه خپله همګي دين بويه
نفع دنيا دے دين په آئين بويه (سعيد خټک)

**ـــ دار**:۔(دا+ر)(ف تر ـ مز ـ ج ـ ان ـ مو ـ اداره ـ ج ـ دارې)شته من ـ دولتمند ـ پنګه ور ـ

**سرمايه ناز** :- (س+ر+ما+ي+نا+ز)(ف تر ـ اس ـ مز)د فخر او ناز پنګه ـ هغـه څيـز چې فخر پرې کولے چې ـ قابل فخر څيز ـ

**سرميلے** :- (ق)(س+ر+م+ب+لے)(اس ـ مـز ـ ج ـ ي) يـو غـړے ـ ډيـده ـ سـکنے ـ ګوشواره (غوږ)

**سرمد** :- (س+ر+م+د)(ع ـ صف)(۱) تل پـاتې کېـدونکے ـ دائم ـ بـاقي مجذوب ـ

مست ـ (۲) د دهلي یو مشهور مجذوب فقیر چې عالمګیر باچا (د شرع په حکم) قتل کړے ؤ ـ عموماً سرمد شهید بللے شي ـ

**ــــ کېدل**:ـ دائمي کېدل ـ همیشه پاتې کېدونکے ـ همیشګي لرونکے کېدل ـ

**سمداً** :ـ (س+ر+م+د+ن)(ع ـ صف)د همیش د پاره ـ ابداً ـ

**سرمدي** :ـ (س+ر+م+دي)(عف تر ـ صف) تل پاتې کېدونکے ـ دائمي د همیشه

**سرمړده** :ـ (س+ر+م+ړ+د)(ص)اشر ـ جمع یا غونډه چې د ولے د کننستلو د پاره یو ځاے کار کوي ـ

**سرمړدي/مردي** :ـ (س+ر+م+ړ+دي)(اس مع ـ ج ـ ی)مزدوري ـ د څۀ کار په بدله کښې اجرت ـ مزد ـ

**سرمست خېل** :ـ (س+ر+م+س+ت+خېل)(اس مع)د میاخېلو یوه وړه څانګه ده ـ چې (جان خوړي، حسن خېل، ادم خېل) افریدي دي ـ

**ــــ (۱)**:ـ(س+ر+م+سُ+ت+خېل)(اس مع) د دړېونیو یوه څانګه ده چې ـ (ووزي خېل ، مهمت خېل ،اتمان زئ ، درویش خېل) وزیر دي ـ

(په بله شجره کښې د دړدوني په ځاے "دړے خېل" لیکلے دے)

**ــــ (۲)** :ـ(ددغه)(اس مع)د عمر خېلو یوه څانګه ده ـ چې (چاپلئ ، موئیه ، اُړین) بیټني دي ـ

**ــــ (۳)**:ـ(ددغه)(اس مع) د ګیګاخېلو یو څانګه ده ـ چې (ناناخېل ، بهلول زئ) محسود دي ـ

**سرمشق** :ـ (س+ر+م+ش+ق) (ف تر ـ مز)دا ستا لیکلے هغه خط چې د تختۍ په سر کښې ولیکي او بیا هلک د هغې لیک مشق کوي ـ

**سرمعلم** :ـ (س+ر+م+ع+ل+م)(اس ـ مز ـ ج ـ ان) لوے معلم ـ مشر استاد ـ هېډ ماسټر ـ

**سرمغزن** :ـ (س+ر+م+غ+ز+ن)(پ تر ـ مز ـ مو ـ نه ـ ج ـ نې)(۱) هغه کس چې په ډېرو و زیاتو خبرو کولو مازغۀ ئې ګنګس شي ـ (۲) هغه سړے چې ډېرې خبرې کوي بکواس ـ

**ــــ کول**:ـ(۱) په ډېرو و زیاتو خبرو ـ مازغۀ ستړي کول ـ مازغۀ ګنګس کول ـ (۲) په سر درد راوستل ـ سر ګرځول ـ لکه:په ډېرو نارودې سر مغزن کړم ـ

**ــــ کېدل**:ـ (۱) په ډېرو و زیاتو خبرو ، د مغزو ګنګس کېدل ـ (۲) په سر درد کېدل ـ لېونے کېدل ـ لکه:ستا په نعرو د لاسه سر مغزن شوم ـ

**ــــ توب**:ـ (تو+ب)(اس ـ مز) د مغزو (مازغو) ګنګس کېدنه ـ ګنګسي (د ډېرو خبرو په وجه) ـ

**ــــ تیا**:ـ(ت+یا)(اس ـ مو) (و ــــ سرمغزنتوب)

**ــــ والے**:ـ(وا+لے)(اس ـ مز)(و ــــ سرمغزنتوب)

**سرمغنول** :ـ (س+ر+م+غ+ز+ن+و+ل)(مص تر) د ډېرو خبرو په وجه ماغزۀ (مازغۀ) ګنګس کول ـ ګنګسول ـ (د ډېرو خبرو په وجه)

**سرمغزونګ** :ـ (س+ر+م+غ+ز+و+ن+ګ) (ق ـ حمص) (و ــــ سر مغزونه)

**سرمغزونه** :ـ (س+ر+م+غ+ز+و+ن)(حمص)په ډېر زیاتو خبرو ـ ماغزۀ ګنګس کونه

**سرمغزونکے** :ـ (س+ر+م+غ+ز+و+ن+کے)(اس فا ـ ج ـ کي)ډېرې خبرې کوونکے ـ هغه سړے چې په ډېرو و زیاتو خبرو ماغزۀ ګنګس کړي ـ

**سرمغزني** :ـ (س+ر+م+غ+ز+ني)(ف تر ـ اس ـ مز)بکواس ـ بک بک ـ

**ــــ کول**:ـ (۱) مازغۀ خوړل ـ ډېر نصیحت یا وېنا کول ـ (۲) بکواس کول ـ

**سرمغزنېدل** :ـ (س+ر+م+غ+ز+نې+د+ل)(مص) په ډېرو زیاتو خبرو (بل کس ،یا خپل ځان) ګنګس کول ـ

**سرمغزنېدنګ** :ـ ( س+ر+م+غ+ز+نې+د+ن+ګ)(و ــــ سرمغزنېدنه)

**سرمغزنېدنه** :ـ (س+ر+م+غ+ز+نې+د+ن)(حمص)په ډېرو زیاتو خبرو مغز و (مازغو) ګنګس کېدنه ـ

**سرمغزېدونکے** :ـ (س+ر+م+غ+زې+دو+ن+کے)(اس ـ فا ـ ج ـ کي)په ډېرو زیاتو خبو ګنګس کېدونکے ـ

**سرمغزنېدۀ** :ـ (س+ر+م+غ+ز+نې+د)(و ــــ سر مغزنېدنه)

**سرمقاله** :ـ (س+ر+م+قا+ل)(اس ـ مو ـ ج ـ لې) لویه مقاله ـ په اخبار کښې هغه مقاله چې د اخبار ذمه وار اېډیټر ئې لیکي ـ اداریه ـ

**سرمګین** :ـ (س+ر+م+ګي+ن)(ف تر ـ صف)(۱) هغه سترګې چې رانجۀ پکښې اچولے شوي وي ـ (۲) د رانجو په شان رنګ لرونکے ـ

**سرمن** :ـ (س+ر+م+ن)(و ــــ څرمن)

**ــــ**:ـ(س+ر+م+ن)(انګ ـ اس ـ مو ـ ج ـ سرمنونه)وعظ ـ نصیحت ـ مذهبي تقریر ـ لکچر ـ

**سرمنډول** :ـ (س+ر+م+ن+ډ+و+ل)(ق ـ اس ـ مز) سرکول ـ سر په کښته ولاړ ـ

**سرمنزل** :ـ (س+ر+م+ن+ل)(ف تر ـ اس ـ مز ـ ج ـ ونه)د کاروان یا د مسافر د کوزېدو ځاے ـ سرائے ـ

**سرِمو** :ـ (س+رِ+مو)(ف تر ـ اس)د وېښتۀ ـ یعني د وېښتۀ د سر هومره ـ لږ شان یو پوټے شان ـ

**ــــ فرق نه"بودل"**:ـ د وېښتۀ د سر همره فرق هم نه بودل معمولي شان فرق هم نه بودل ـ بالکل یو شان ـ

**سرموغ** :ـ (س+ر+مو+غ) (اس ـ ج ـ ماغۀ) بټني یو قسم وابنۀ ـ چې په شاړه او بنوره زمکه ډېر کېږي ـ

**سُرمه** :ـ (س+ر+م)(ف ـ اس ـ مو) رانجۀ ـ

**ــــ اګین**:ـ(ا+ګي+ن) (ف تر ـ ص) سترګې چې رانجۀ پکښې اچولي شوي وي ـ په رنجو توري ـ

**ــــ الود**:ـ(ا+لو+د) (ف تر ـ ص)(و ــــ سرمه اګین)

**ــــ درګلو**:ـ(د+ر+ګ+لو)(ف تر ـ صف) په مرۍ کښې رانجۀ ـ کایه ـ خاموشي چپیا ـ(د رانجو خاصیت دے ـ چې وخوړے شي ـ نو اوازئې کېښني)

**سرمه چشم** :ـ (س+ر+م+ئے+چ+ش+م)(ف تر ـ صف) د سترګو رانجۀ ـ کفایه ـ ډېر خوږ ـ ډېر مئین ـ

**سرمه سلېماني** :ـ (سُ+ر+م+ئے+سُ+لې+ما+ني)(ف تر ـ اس ـ مو) هغه افسانوي رانجۀ چې په سترګو کښې اچولو سره لـه بني ادم ته پیریان دیوان او خزانې هر څۀ ښکاربدل ـ

**سرمهار** :ـ (س+ر+م+ها+ر) (اس ـ مز) هغه نرے تار چې د اوښ د پوزې خواته په جلب کښې وي ـ

**سرمۍ** :ـ (س+ر+م+ئ)(صف) د رانجو په شان رنګ ـ چې تور وي ـ خو لږ شان باټېنګړي یا ابي شان ګډون لري ـ

**سرِ مېدان** :ـ (س+رِ+مې+دا+ن) (ف تر ـ اس) په مېدان کښې ـ په مقابله کښې

**سرن** :ـ (س+ر+ن)(صف ـ مز ـ مو ـ ه) سر کښې ـ

**ــــ**:ـ(س+ر+ن)(اس ـ صف ـ مز)هغه اس یا قچره چې زېړ بخن رنګ لري ـ کرنګ اس ـ

**سُرنا** :ـ (س+ر+نا)(ف ـ مو ـ ج ـ ګانې)په خولې په پوکي غږېدونکے ـ مشهور ساز ـ نفیري ـ

**سرناچي/ئ** :ـ (س+ر+نا+چي/ئ)(اس ـ فا مز ـ ج ـ ان) هغه سړے چې سُرنا غږوي ـ د سرنا غږولو ماهر ـ

**سرنامه** :ـ (س+ر+نا+م)(۱) د مضمون عنوان ـ

چې وئیلے مې لتا دے دا حدیث
سرنامه د هر انشا دے دا حدیث (رحمان)

(۲) په خط کښې د سر لیکلے شوے عبارت ۔ (۳) پته لبیک ۔ (ا ـ ق)

**سرنائے** :-(س+ر+نا+ئے) (ف ـ اس)(وـــــسرنا)

**سرجنج** :-(س+ر+ن+ج)(اس ـ اس ـ مز ـ ج ـ ونه) په بدن کښې د مائع د ارو داخلولو اله ـ د دارو پیچکاري ـ

**سرنجه** :-(س+ر+ن+ج)(اس ـ مو ـ ج ـ سرنجې) سرونجه ـ د ویلې شوي کچو درد ـ

**سرنخ** :-(س+ر+ن+خ)(ق ـ اس ـ مز ـ ج ـ ونه) د انګورو د ځېلې سر چې د مضوعي مخصوصه پشتې د بل سروي ـ

**سرنده** :-(س+ر+ن+د) (ص) (وـــ سرکنده)

**ـــ**:-(س+ر+ن+د) (وـــ ځرنده)

**سرندے** :-(س+ر+ن+د+ے)(اس ـ مز ـ ج ـ ي) غچکه ـ د سارنګ ـ (سرینده) په شان یا ساز دے ـ

**سرنشین** :- س+ر+ن+شي+ن) (ف تر ـ اس ـ مز) هغه کس چې د اس یا قچرې وغېره د بار د پاسه ناست وي ـ

**سرنبنته** :-(س+ر+ن+خ/ش+ت) (اس ـ مو ـ ج ـ سرنبنتے) د یوې ونې نوم چې لرګے ئې ډېر سخت وي ـ

**سرنګ** :-(س+ر+ن+ګ)

**سرنګه** :-(س+ر+ن+ګ)(وـــ ځرنګ ـ او ځرنګه)

**سـرنګ** :-(س+ر+ن+ګ) (اس ـ مز ـ ج ـ ان) سردار ـ سرغندے ـ د لښکر نه وړاندې تلونکے ـ(د سرهنګ بدل شکل دے)

**سُرنګ** :-(س+ر+ن+ګ) (۱) هغه سورے چې په کاڼي یا زمکه کښې جوړ کړے شي ـ او په بارودو الوزولے شي ـ (۲) په غرۀ یا په زمکه کښې دننه لوے او ارت سورے چې سړے یا خلق یا ګاډے وغېره پکښې تلے راتلے شي ـ

**ـــ الوزول**:- د زمکې د لاندې نالې په غرۀ کښې ځۀ ځاے په بارودو اولوزول

**ـــ خورول**:- (وـــسرنګ لګه ول(۲)

**ـــ لګول**:- (۱) سورے کول ـ کنډر کول ـ (۲) په زمکه په غرۀ کښې یا په سمندر کښې د بارودو الې لګول ـ (یو نوے ایجاد دے) (۳) پته لوګول ـ

**سرنګاپټم** :-(س+ر+ن+ګا+پ+ټ+م)(اس مع) د جنوبي هند د یو پخواني ریاست دارالحکومت ـ چې اول پکښې حیدر علي او بیا د هغۀ زوے ټیپو سلطان پکښې باچا ؤ ـ د ولډو پېرنګیانو سره سختې مقابلې وکړې او ټیپو سلطان د فرنګیانو سره په نره جنګېدلو نه پس شهید کړے شو او هغۀ نه پس د پېرنګیانو مخه ازاده شوه ـ

**سـرنګے** :- (س+ر+ن+ګے) (ق ـ اس ـ مز ـ ج ـ ګي)(۱) کوټه ـ عمارت ـ (۲)لاروے (۳) غلام ګردش ـ (په لوے ـ عمارت کښې چت شوے لار) برانډه

**سرنګي** :- (س+ر+ن+ګي)(اس ـ مو)سرنګ ـ سره تعلق لرونکے ـ

**سرنوشت** :-(س+ر+نو+ش+ت)(ف تر ـ مز ـ ج ـ ونه) هغه لیک چې د ازل په ورځ لیکلے شوے دے ـ د ازل لیک قسمت ـ د تندي لیک ـ

سرنوست مې له ازله مګر دا ؤ
زۀ به ځۀ سره ماښه کوم له چا نه (خوشحال)

**سرنی** :-(س+ر+ن+ی)(اس ـ مو)سر سره تعلق لرونکے ـ د سر لکه:سرنۍ برخه ـ

**سرنه ئې** :- (س+ر+ن+ئ)(اس ـ مو)(و ـ سر ناچي)

**سرنے** :-(س+ر+نے) (اس ـ مز)(وـــسرنا)

**سرنے چي** :-(س+ر+نے+چي)(اس ـ صف ـ مز)(وـــسرناچي)

**سرنیخو** :- (س+ر+ني+خو)(پ تر ـ اس ـ مز)زوېږ ـ انزائي ـ مخ په ښکته سر بالاښۀ دے که سر نیخو ـ په دواړو دې لعنت وي ـ (متل)

**سرني خېل** :- (س+ر+ني+خېل)(اس ـ مع)د شموزویوه ځانګه ـ اسماعیل زئ ـ د اتمان خېل دي ـ

**سرنیزه** :-(س+ر+نې+ز)(اس ـ مز ـ ج ـ زے)لوبه نېزه ـ

**سرنیکۀ** :-(س+ر+ني+ک) د نیکه نیکه ـ د اووم پشت نیکه ـ د غور نیکه ـ غورنیکۀ ـ

**سرنیم** :- (س+ر+ني+م)(انګ ـ اس ـ مز)خاندان ـ نوم ـ لقب ـ کنیت ـ

**سرو** :-(س+ر+و)د سرۀ اضافي یا ضروري شکل ـ لکه ـ د سرو کالي ـ

**ـــ سپینو سره لوبې کول**:ډېر دولتمند "بودل" بې خرته ډېر دولت لرل ـ

**ـــ په پړ بوتل**:- (ق) کنایه :سرۀ زر لرل ـ

**ـــ**:-(س+ر+و) (اس مع) یوه ونه چې اوچته مخروطي شکل لري ـ

**ـــ بالا**:-(با+لا) (ف تر ـ صف) لوړه سرو ـ د سرو په شان لوړ قدلرونکے ـ (د معشوقې شاعرانه صفت دے)

**ـــ بلند**:-(ب+ل+ن+د) (ف تر ـ صف) (وـــسروبالا)

**ـــ قامت**:- (ـــقا+م+ت) (ف تر ـ صف) وـــسروبالا)

**ـــ قد**:- (ق+د) (ف تر ـ صف) (ـــسروبالا)

**سرواخ** :-(س+ر+وا+خ) (اس ـ مز) (وـــسروانښ)

**سرواخے** :- (س+ر+وا+خے) (اس ـ مز ـ ج ـ خي) سرکښ ـ سرغړوالے ـ باغي ـ

**د خولے ـــ نۀ لرل**:- د خرلے بند بز نۀ لرل ـ بې واکه خبرې کول ـ

**سروازاد** :- (س+ر+و+آ+زا+د) (ف تر ـ اس ـ مز) (۱) د سروے هغه ونه چې ځانګې ئې ښېغې په بره تلې وي ـ (۲) د سروې بوټے تل شین وي او د خزان اثر پرې نۀ کېږي ـ ځکه ورته ازاد وائي ـ

**سـروازونې** :- (س+ر+وا+زو+ن+ړے) (اس مو) (ق) د ناوې د وادۀ دریمه ورځ چې اودلے سر ئې سپړدے شي ـ

**سروانښ** :- (س+ر+وا+خ/ش) (اس مز ـ ج ـ ونه) (۱) هغه پړے چې د غوئي ښکرونه پرې تړلے شي ـ(ق) (۲) د زغونې نه غښلے شوے پړے ـ

**سروانښے** :-(س+ر+وا+خے/شے) (اس ـ مز ـ ج ـ ي) د سروندے ـ د ځرمنې هغه تسمه چې د اوبو د مشک خولۀ پرې تړلې شي ـ

**سرواګے** :- (س+ر+وا+ګے) (اس ـ مز ـ ج ـ ګي)مشر ـ رئیس ـ بزرګ ـ (ق)

**سروال** :-(س+ر+وا+ل)

**سرواله** :-(وـــــل) (ف اس) پرتوګ ـ شلوار ـ

**سروان** :-(س+ر+وا+ن) (وـــسروانے)

**سروان خېل** :- (س+ر+وا+ن+خېل) (اس مع) د داؤد خېلو یوه ځانګه دي ـ چې د غلزو پاونډۀ ناصرو اولاد دے ـ

**سرواندے** :-(س+ر+وا+ن+دے) (ق اس ـ مز ـ ج ـ ي)(۱) د زمکې هغه حصه چې د اوبو سر طرف ته وي ـ (۲) د پل (پول) سر یعني چې د کوم ځاے نه د پل تعمیر شورو کېږي ـ

**سروانډے** :-(س+ر+وا+ن+ډے) (اس ـ مز ـ ج ـ ي) (۱) د پټي هغه حصه چې د کر نه پاتې شوې وي ـ او لو شوې نۀ وي ـ (۲) هغه غوئې چې د یوې په کار اموخته شوې وي ـ

**سروانړے** :- (س+ر+وا+ن+ړے) (اس ـ مز ـ ج ـ ړي) سر وړاندې ـ د لښکت هغه برخه چې وړاندې ځي ـ یروال ـ

**سروانے** :-(س+ر+وا+نے)(اس ـ مز ـ ج ـ ني)د یو ونې نوم ـ چې مېوه ئې ترخه او

زهرینه وي۔

**سروب** :- (س+رو+ب)(ق۔اس)بالکل۔خالص۔

**سروبر** :- (س+رو+ب+ر)(ق۔مز)درک۔سراغ۔

**سروبن** :- (س+رو+ب+ن)(اس۔مز) محبوب۔لکه:نمونځ کوم د مازیګر په نیت کښې راغے سروبن (غاړه)

**سروبے** :- (س+رو+بے)(اس۔صف۔مز۔مو۔بې) سري ورخ۔سروتے۔کنډه۔

**سروپ** :- (س+رو+پ)(کلمه تاکید) بالکل۔بیخي۔خالص۔عموماً د بلې کلمې د تاکید د پاره راځي۔لکه:سروپ ناروا۔سروپ دروغ۔

**سروپا** :-(س+رو+پا(ي)(اس تر۔مز)(۱) د سر نه تر پښو پورې۔عموماً د جامو د پاره راځي۔د سر نه تر پښو پورې د جامو جوړه۔(۲) خلعت۔

ـــــ (ے) بخښل۔خلعت ورکول۔دسر نه تر پښو پورې د جامو جوړه ورکول

**سروته** :- (س+ر+و+ت+ر) (اس۔مو۔ج۔وترے) موصله۔مصله۔جانماز۔

**سروتن** :- (س+رو+ت+ن)(اس۔مز) برابر۔یو شان۔

ـــــ **رسېدل**:۔ په وېش کښې څۀ څیز ټولو ته برابر برابر رسېدل۔

ـــــ **کېدل**:۔ برابرېدل۔یو شان کېدل۔مساوي کېدل۔

**سروتے** :- (س+ر+و+تے) (اس۔صف۔مز۔مو:تی) سروے۔سري ورخ۔کنډه

**سروټ** :- (س+ر+و+ټ) (اس۔ص)سرشار۔او سرمست۔

**سروټکه** :- (س+ر+و+ټ+ک)(اس۔مو۔ج۔سروټکې) سکروټکه ل۔ انګار

**سروټے** :- (س+رو+ټے)(ق اس۔مز۔ج۔ټي) لکه: شک لیدونے دے و سڅاته ګوري لوړ و سروټي ته۔(۱) د څۀ څیز یو قوده۔(۲) د اوبو د شک نیمه وروستنۍ حصه(خولې طرفه وړاندېنۍ حصې ته ځاګله وائي)

**سرو** :- (چمان/چمن/خرام/خرامان/رعنا/سهي/قد/ناز/روان)(ف تر۔اس۔مز) دا ټول الفاظ ظاهر د سرو صفتونه دي۔مجازاً تربنه مراد ښکلې معشوقه یا معشوقه دي۔

**سروچمن** :-(س+ر+و+چ+م+ن)(ف۔تر۔صف) د چمن یا باغ سود۔کنایه:لوړ قد لرونکے معشوقه۔

**سروچوبے** :-(س+ر+و+چو+بے)(ق اس۔مز۔ج۔بي) د ښځو د سروچولو کپړه۔تولیه۔

**سوچونے** :-(س+ر+و+چو+نِ)(اس۔مز۔ج۔نې) هغه کپړه چې زنانه پرې سر وچوي۔د سر تولیه۔

**سروِخرام** :- (س+ر+و+خِ+را+م+اخ+را+ما+ن)(ف تر۔صف) هغه سرو وچه د ناز تلل هم کوي۔مجازاً۔معشوقه چې لوړ قد لري۔

**سرود** :- (س+رَو/رو+د)(ف۔اس۔مز۔ج۔ونه) ساز۔موسیقي۔نغمه۔سندره۔

د بلبـــلو نغمـــه زاغ کولے نۀ شي
هر سرود آواز په طور د خپل تار کا

ـــــ **غږېدل**:۔ ساز غږېدل۔موسیقي غږېدل۔

ـــــ **کېدل**:۔ سرود غږېدل۔ساز غږېدل۔

لبونے لبونے تــر شي
څو چې شي زرته سرود (خوشحال)

**په ـــــ اورېدل**:۔ په سرود باندې غزل یا نغمه اورېدل۔

که بېدار شې خود به واورې
پـــــه نغمـــــه اوبۀ سرود (رحمان)

**سرودي** :-(س+رُو/رو+دي) (اس۔مـز۔ج۔ان) سـرود غـږونکے۔سـازنده۔سندر غاړے۔سندره ویونکے۔

**سرود** :- (س+ر+ؤ+د) (ص مز۔مو۔سروره۔ج۔ورې) پلن۔لوے سور والـه۔

لوے عرض واله۔

ـــــ:۔(س+ر+و+د) (ف۔اس۔مز)(۱) سردار۔مشر۔حکمران۔(۲) مالک۔آقا۔

ـــــ **کول**:۔حکمران کول۔سردار کول۔خپل اقا او مشر کول۔

سلطان سرور که په سریر مسند ئې خپل وګڼي
ناګـــاه ئې واخـلي دیګران د بـېلتانۀ له تاخنه (حافظ)

**سروِرانبیاء** :- (س+ر+و+رے+ر+ن+ب+یا)(عف تـر۔اس مـع)د ټولـو نبیـانو سردار یعني حضرت محمد ﷺ۔

**سرورِعالم** :- (س+ر+و+رے+عا+ل+م) (عف تر۔اس۔مو) د درستې دنیا سردار۔حضرت محمد مصطفی ﷺ۔

**سـرور کائنـات** :- (س+ر+و+رے+کا+ئے+نـا+ت) (عـف تـر۔اس۔مـع) د ټـول کائنات سردار۔یعني حضرت محمد مصطفی ﷺ۔

**سرور** :- (س+رو+ر) (ع۔اس۔مز۔ج۔ونه)(۱) خوښي، خوشي۔خوشحالي۔مسرت۔(۲) مستي۔

ـــــ **انګېـز**:۔(ا+ن+ګـې+ز)(ف تـر۔صـف)(۱) سـرور پېـدا کـوونکے۔مسـرت خوشحالي پېدا کوونکے۔(۲) سپکه شان نشه پېدا کوونکے۔

**سرورخ** :- (س+ر+و+ر+خ) (اس تر۔مز۔ج۔ورخونه)(۱) د اوبو د روتلو سر، د اوبو خوله سر چینه۔(۲) مجازاً د کار شورو (شروع) وړومبۍ مرحله

**سورخے** :-(س+ر+و+ر+خے) (اس۔مز۔ج۔ورخي)(۱) د ابو د وتلو ځـاے۔سر چینه۔سر چشمه۔(۲) هغه حوض یا ډوغل چې د اوبو خولې ته نزدې جوړولے شي۔چې د شګې د جمع کېدو د پاره جوړولے شي (ق)

**سرورخېل** :-(س+ر+و+ر+خېل) (اس مع) د نیکزم کبلو یوه څانګه ده چې (تور سپر، ګلۍ، ادم خېل) افریدي دي۔

**سروروان** :-(س+ر+و+ر+وا+ن)(ف تر۔صف) (وــــسروخرام)

**سروره** :- (س+ر+و+ر)(صف۔مو۔ج۔رے) زرخېزه۔شین شینکي واله۔

**سـرورے** :-(س+ر+و+رے)(اس۔مـز۔ج۔ي) دنـده۔د باچاهـانو او امیرانـو د سفر اسباب چې وړاندې وړے شي۔(رق)

**سرورے** :- (س+ر+و+رے) (اس۔مز۔ج۔ي) سرباري۔

**سروري** :-(س+ر+و+ري)(ف تر۔اس۔مو:رې) سرداري۔مشري۔پېشوائي

ـــــ **چارشنبې**:۔ (چا+ر+ش+ن+بې) (ق۔اس)د صفر (سپره) د میاشتې اخري چارشنبه۔

**سروزنه** :-(س+ر+و+ز+ن)(اس۔مو۔ج۔نې) تبغه۔په پرتوګ کښې د پرتوغ ابن اچولو ځاے۔بډه۔

**سرووډ** :-(س+ر+و+ګ/ژ+د)(اس۔مز)(۱) بالبنت۔(۲) بل سړي سره ځملاستل۔لکه:بل سړے بل سرووډ په ما حرام دے۔

**سـروس** :-(س+ر+و+س)(انـګ۔اس۔مـز)(۱) نـوکري۔ملازمـت۔چـاکري (۲) خدمت۔(۳) د موټر لرۍ وغېره د صفائي وېنځل او تیل موبلائل وغېره اچول۔

ـــــ **بک**:۔(ب+ک) (انګ تر۔اس۔مز۔ج۔ونه) هغه کتاب چې پکښې د یو ملازم یا سرکاري نوکر کوائف۔چټیانې وغېره لیکلې شي۔

ـــــ **سټېشن**:۔ (انګ تر۔اس۔مز) هغه ځاے چېرته چې د موټر د لارو معمولي مرمت او وېنځلو کار کېږي۔

ـــــ **کول**:۔(انګپ۔مص) د موټر لارۍ وغېره وېنځل۔صفائي او موبلائل وغېره اچول۔

**سـروش** :-(سـا+رُو+ش) (ف۔اس۔مـز)(۱) د غیـب اواز۔الهـام۔(۲) فرښـته۔جبرائیل علیه السلام۔

**سروښکونے** :- (س+ر+و+خ/ش+کو+نے) (اس ـ نا ـ ج ـ ي) کښ (رکس) سخت لګامه ـ نافرمان ـ

**سروغل** :- (س+رو++غ+ل) (مص) سخت کار اخستل ـ مشقت پرې کول ـ

**سروغلے** :- (س+رو+غ+لے) (اس ـ مف ـ ج ـ ي) په مشقت کښې ګېر ـ په سخت کار لګولے شوے ـ

**سروغنه** :- (س+رو+غ+ن) (اس ـ مو ـ سروغنې) (۱) سخت کار مشقت (۲) عذاب ـ

**سروغنوکے** :- (س+رو+غو+ن+کے) (اس فا ـ ج ـ کي) په مشقت کښې راوستونکے ـ سخت محنت يا کار اخستونکے ـ

**سروکار** :- (س+رو+کا+ر) (اس ـ مز) (تعلق ـ تړون ـ ربط ـ

زۀ عاشق يم سروکار مې دے له عشقه

نـۀ خليل نۀ داودزے يم نۀ مهمند (رحمان)

**سروکال** :- (س+رو+کا+ل) (مذکر) ټول کال ـ درست کال ـ (عموماً "کالوسر" وائي)

ـــ :- (س+ر+و+ل) (وـــ ځرول)

**سرول** :- (س+ر+و+ل) (اس ـ مز) ميږ ـ مشهور دات ـ چې عموماً تر لوښي جوړېږي ـ ټټ ـ

**سرولکي** :- (س+رو+ل+ک+ئ) (وـــ سرولم)

**سرولم** :- (س+رو+ل+م) (اس تر ـ مز) سر او لکۍ ـ اول سر او اخر سر ـ شورو او اخر ـ

پر ـــ **کېدل** :- (ق) کنايه: ډېر په قهر بدل ـ

**سروناز** :- (س+ر+و+نا+ز) (ف تر ـ صف) (۱) هغه سرو چې ځانګې ئې په هر لور خورے وي ـ (۲) کنايتهً: معشوقه ـ ښکلې ښځې ـ (۳) په موسيقۍ کښې د يو سر نوم ـ

**سرونټ** :- (س+ر+و+ن+ټ) (انګ ـ اس ـ مز) نوکر ـ ملازم ـ

ـــ **کواټر** :- (ک+وا+ټ+ر) (انګ تر ـ اس ـ مز ـ ج ـ ونه) د نوکر وړوکے شان کور ـ په لويه بنګله کښې ـ هغه وړوکے شان کور چې پکښې نوکر اوسي ـ د نوکر د استوګنې کور ـ (د کوارټر عام شکل دے)

**سرونجه** :- (س+رو+ن+ج) (ق ـ اس ـ مو ـ ج سرونجې) درد ـ د اوبو شرو مستو نه چې څۀ څيز لاندې پاتې شي ـ سرنجه ـ

**سرونځه** :- (س+رو+ن+(د)ز) (اس ـ مو ـ ج ـ سرونځې) د پرتوغ ـ انړ د اچولو ځاے ـ نېضه ـ

**سرونډے** :- (س+ر+و+ن+دے) (اس ـ مز ـ ج ـ ي) (۱) سر اوښے ـ هغه تسمه چې د شک خوله پرې ترلے شي ـ (۲) د سر تړلو رومال ـ سرتړونے ـ

**سرونړے** :- (س+ر+و+ن+ړے) (اس ـ مز ـ ج ـ ي) سر وانډے ـ هغه لښکر چې وړاندې ځي ـ هر اول د سنته ـ

**سرونړ** :- (س+ر+و+ن+ړ) (اس ـ مز) د پياده يا د سورو وړاندې تلونکے لښکر پيش قراول ـ

**سرونګه** :- (س+رو+ن+ګ) (اس ـ مو ـ ج ـ سرونګې)

**سرونګے** :- (س+رو+ن+ګے) (اس ـ مز ـ ج ـ سرونګي) د انګورو خوشه ـ ډنډوړے ـ

**سرونوک** :- (س+رو+نو+ک) (ق اس ـ مز) (۱) ټول ـ درست ـ (۲) برابر ـ مساوي ـ

**سرونه** :- (س+رو+ن) (اس ـ مز) د سر جمع ـ

ـــ **جوړول** :- د تاش (اود ګنجفې) په لوبه کښې په يو وار ګټلے پتوته سر وائي ـ دغه شان د ګټلو پتو ، سرونه زياتول ـ

ـــ **يوځائے کول** :- سره مشوره کول ـ پټ مصلحت کول ـ سوچ فکر کول ـ

**سروودنے** :- (س+ر+وو+د+نے) (اس ـ مو) هغه ښځه چې ناوې سنګاروي ـ سينګارونے ـ سر کړونے ـ مشاطه ـ

**سروور** :- (س+ر+وو+ر) (اس ـ مز ـ ج ـ ونه) هغه شيريني (خواږۀ) کوم چې د زوم د کوره د ناوې کورته وړلے شي ـ

**سروول** :- (س+رو+ؤل) (مص) مږل ـ مالشي کول سر وئيل ـ

**سروه** :- (س+رو+ه) (اس مع) د بشاخېلو ځانګه ده ـ چې (کمالي ، حليم زئ) مهمند دي ـ

**سروي** :- (س+ر+و+ئ) (صف ـ مو) چې سروے يا سورے وي پکښې ـ

**سروے** :- (س+ر+وے) (نګ ـ مو) کتنه ـ اندازه ـ کچ ـ جريب کشي ـ

ـــ **کول** :- (انګپ ـ مص تر) مساحت کول ـ کچ کول ـ جريب کشي کول ـ اندازه اخيستل ـ

ـــ :- (سُ+ر+وے) (اس ـ مز) (لهجه ـ سورے)

په لحد پرېږدي سروي

د ګران همزولي وراځي (غاړه)

**سروېرد** :- (س+ر+وي+ګ/ژ+د) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) بالښت ـ تکيه ـ

سپين مږوند د دلربا که مې سروېزد شي

سر به هسک نۀ کړم د وصل له بالښته (پيرمحمد کاکړ)

**سروېردکے** :- (س+ر+وي+ګ/ش+د+کے) (اس ـ مذ ـ ج ـ کي) وړوکے سروېردے وړوکے بالښت ـ (د سروېرد تصغير دے)

**سروېردے** :- (س+ر+وي+ګ/ژ+دے) اس تر ـ مذ) سروېرد ـ بالښت ـ تکيه

څو مې ستا مږوند د سر سروېردے شي

سر به هيڅکله کښې نۀ ږدم په سروېردي (خوشحال)

**سروېس** :- (س+ر+وي+س) (فر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) ملازمت ـ خدمت ـ (انګ ـ سروش)

ـــ **هوائي** :- (ه+وا+ئي) (فپ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د هوائي جهازونو د سفر خدمت

**سروېښ** :- (س+ر+وي+خ/ش) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د کټ لنګه ـ

**سروېښت** :- (س+ر+وي+خ/ش+ت) (اس ـ مذ ـ خ ـ ونه) (۱) بالښت ـ (۲) د سينې سر

**سروېل** :- (س+ر+وي+ل) (اس ـ مذ) سکه ـ

بل دليل تردابه درلره راوړم

د سرو زرو سره وېلے سروېل (خوشحال)

ـــ :- (س+رو+ئ+ل) (مص) (۱) مږل ـ څۀ څيز په تلي کښې مښل ـ (۲) مالش کول ـ (۳) په شدت سره مښل او سُر لوئي (جيبي)

زړۀ مې وسپاره وتاته چې ساته ئې

نـۀ چې تۀ ئې سره وسرويه په بله (خوشحال)

**سروئيلے** :- (س+رو+ئ+لے) (اس مف ـ ج ـ ي) (۱) مږلے شوے ـ په تلي مښلے شوے ـ (۲) مالش شوے ـ (۳) چخړي شوے ـ

**سروينه** :- (س+رو+ي+ن) (حمص) مږلے کېدنه ـ

**سرويونکے** :- (س+رو+يو+ن+کے) (اس ـ فا ـ ج ـ کي) مښونکے ـ مالش کوونکے

**سرويه ؤل** :- (س+رو+ئ+و+ل) (مص مت) ماته ول ـ کنډر کول ـ نابلده غول د ژاندر په څوي جومات سرويه وي (متل ـوز)

**سرۀ** :- (س+ر) (اس ـ مذ) (۱) د سور جمع ده ـ سور رنګي (څيزونه) (۲) (اسم جم) سرۀ زر ـ طلا ـ سونا ـ

ـــــ **اوسپين**:- (او+س+پي+ن) سرهٔ زر او سپين زر -

ـــــ **باټينګڼ**:- (اس - جم) ټماټر -

ـــــ **بانجڼ**:- (با+ن+ج+ن+ړ) سرهٔ باتينګڼ - روسي باټينګڼ(ق)

ـــــ **توول/تويول/او سرهٔ ګټل**:- (ق) وينې تويـه ول - او سرهٔ زر ګټـل - كنايه:سخت محنت - مشقت كول او دولت ګټل -

ـــــ **چينجي**:- (چي+ن+چي) (اس جم) پشكالي چينجي - خراطين - مكړی -

ـــــ **زر**:-(اس - ج) (۱) سونا - طلا - قيمتي باد قدرې څيز -

ـــــ **سابي**:- (سا+بي)(ق - اس جم) د قندهاري انګورو يو قسم -

ـــــ **شونډخاني**:- (شو+ن+ډ+خا+ني) (ق - اس جم) انګورو د كشمشو يو قسم - چې سور رنګ لري - چې ډېر نفيس - بې دانه او اوږد وي -

ـــــ **كافر**:-(كا+ف+ر)(كا+پ+ر) (اس مع) د چترال په علاقـه كښـې اوسېدونكـې - يو پخوانې قام - چې تر اوسه په خپل زوړ دين دي - د رنګه سرهٔ سپين دي - څكه ورته د خواؤشا مسلمان سرهٔ كاپر (كـاف) وائي ډېر عجيبـه پخواني د سمونه لري

ـــــ **كشمش**:- (ك+ش+م+ش)(ق - اس - جم) هغه كشمش چې سر رنګ لري - سري مېوه -

ـــــ **كول**:-(سرهٔ ، د سور جمع ده چې د واحد د پاره راځي) (۱) ډېر څيزونـه پـه اور كښـې دمـره ګرمـه ول چې سرهٔ انګـار شي - (۲) د خوراک څهٔ څيـز دارو د پاسه يا په غوړو كښې پخول -

ـــــ **كول**:- (ق) قرباني كول - خېرات كول -

ـــــ **كېدل**:- (۱) د څهٔ څيزونـه (لكه اوسپنه) پـه اور كښـې دمـره ګرمېـدل - چې رنګ ئې لكه د انګارنګ سور شي - (۲) د خورانک د څهٔ څيـز د اور د پاسه يا په غوړو كښې پخېدل - (۳) د ګڼو كسانو په قهرېدل -

ـــــ **لاسونه**:- (لا+سو+ن) (۱) په نكريځو (نكريزو) سرهٔ كړي لاسونه - (۲) لاسونه چې په نكريځو (نكريزو) پرې ګلكاري شوې وي -(رق)

ـــــ **مهـران**:- (۱) د سر مهر جمع ده - د سرو زرونـه جوړ مهـران مهـر د مغلـو د وخت سكه ده -

سرهٔ مهران دي ننه وځي په كهسار (خوشحال)

(۲) قرض يا د امانت په حقله وئيلې شي چې دا بـه نهٔ ضائع كېږي - ضرور بـه درته واپس دركولې شي -

ـــــ **وېښتهٔ**:- په سرو د ښېنـتو كښـې وادهٔ كول - پـه كم عمر كښې وادهٔ كول - پـه وړوكوالي كښې وادهٔ كېدل (د جينكو په حقله وايه شي)

**په وينو ـــــ كول**:- (په وينو سور رنګ وركول - ونې لګول -

پـه سپين لاس دې پورې كړې دي جنا

كـــه سرهٔ كړې دې پـه وينو دې اشنا (خواجه محمد بنګش)

ـــــ **د مخ**:-(د+م+خ ) د مخ سرخي - د مخ رعب - ښكلا د مخ سرهٔ نه لري -

**سرهٔ ـــــ سرهٔ كول**:- يو بـل سور كول (پـه وينو) يو بـل زخمي كول - پـه وينو ككړول -

**سره** :- (س+ر ) (صف - مو - ج - سرې) (۱) د سور رتانيث - سور رنګې - د سور رنګ -

لكه: سره سوه سره غــــــرمه سوه

سره په څوزو كښې ښكاره سوه (غاړه)

لكه: پـــر دېـــوال د واوړم سرې

كه مات كم كلپ د دروازې (غاړه)

سره سوه غرمه سوه سره په څوزو كښې ښكاره سوه -

(۲) معشوقه - محبوبه - لكه:پردېوال د د رواوړم سرے كه مات كم كلپ د دروازے - (غاړه)

ـــــ **اوزرغونه**:- د بوډۍ ټال - شنه او زرغونه زېره زرغونه -

**په ـــــ اوزرغونه كښې ر غښتل**:- د بوډۍ ټال كښې رغښتل - كنايـه ده د هغې سړي په حقله وئيلې شي - چې ګوسه وي رېره بريت ئې نهٔ وي - مطلب دا چې د ښځو په شان ته "بودل" لكه:فلافې په سرهٔ زرغونه كښې رغښتې دے - يعني رېره بريت نهٔ لري د ښځو په شان -

ـــــ **اوشنه**:- (ا+و+ش+ن) (اس - مو) د بوډۍ ټال - سرهٔ او زرغونه -

ـــــ **ايكي**:- (اي+كي) (ق مر - ج سرې ايكې) سرهٔ پېسه -

ـــــ **باتۍ**:- (با+ت+ۍ)(پ تر - اس - مو) (۱) وـــسره بتۍ - (۲) د پوليس د يـوے وړوكې عهدے د ښكاره كولو يو نخښنه - چې په مټ لګاولې شي -

ـــــ **بتۍ**:-(ب+ت+ۍ) (پ تر - اس - مو)د سړک پـه غـاړه لګېدلو د ټريفک رڼا ګانو كښې سور دنګې رڼا - چې د اودرېدلو - او وړاندې نه راتلو علامت دے -

ـــــ **بحيره**:- (ق) (غپ تر - اس مع) بحيره قلزم -

ـــــ **بګۍ**:-(ب+ګ+ۍ) (اس - مو) يو قسم شنه دي - چې د څارو يو ښهٔ خوراک دے

ـــــ **بوړۍ**:- (بو+ړ+ۍ) سرهٔ قلمه (ق)

ـــــ **بوڼۍ**:-(بو+ن+ړ+ۍ) د قلبې د څرمني تسمه (ق) -

ـــــ **پاڼه**:-(پا+ن+ړ)(پ تر اس - مـو - ج - ې) كـاهو - يو قسم سبزي - چې كچه خوړلې شي - پانو - كاود -

ـــــ **پوښتكه**:- (پـــو+خ/ش+ت+ک) (ف تـــر - اس - مـــو - ج - ې) ســيلمه د ګوګوشتكو يو قسم غمبرې -

ـــــ **تبه**:-محرقه تبه - تپ محرقه -

ـــــ **ترخه**:- (ت+ر+خ) (ق اس - مو) يو ځنګلي بوټے دے -

ـــــ **جنډۍ**:- (ځ+ن+ډ+ۍ) (پ تر ـل اس - مـو) وړه جنډۍ چې كپړه ئې سر وي عمومـاً د رېـل ګـاډي بابوګـانو سره وي سور رنګې جنډۍ د منعې يـا د ودرېدلو علامت دے -

ـــــ **جنډۍ خوځول**:- (۱) د منعې نهٔ راتلو ،ودېـدو ، يـا د ولاړ اوسېدو حكم وركول - (۲) لغد (تا) منعې كول -

ـــــ **ځله**:-(ت)س+ل) (ق اس - مو) د سخت ځمې د څلوښتو ورځو وروستو راتلونكې لس ورځې -

ـــــ **څنګوړے**:- (ت)س+ن+ګو+ړے)(پ تر - اس - مـو - ج - ے) د مرغـۍ هغـه بچې چې لاتې وزر نهٔ وي شوے - سره غوښه -

ـــــ **خاوره**:- (اس - مو) هغـه سـور رنګې خـاوره - چې دېوالونـو لـه پـرې رنګ وركولې شي -

ـــــ **خوله**:-(خُ+ل ) ډېر وړوكې ماشوم - لكه: سرے خولې ماشومان ئې پرېښودل -

ـــــ **زرغونه**:- (ز+ر+غُ+ن) (اس مر - مو)د بوډۍ ټال قوس د قزح -

**په ـــــ زرغونه كښې رغښتل**:- (ق) كنايه:كوسه سړے چې رېره بريت نهٔ لري - (وائي چې دا سړے د بوډۍ ټال كښې رغړېدلې دے - څكه بې رېرے شوے دے)

ـــــ **شله**:-(ش+ل ) (ق - ص) د شري يا د غټو دانو (چيچک) يو بـل سره جختې داني

ـــــ **غاړه**:- (غا+ړ) (ق - اس - تر - مو - ج - غاړې) جنګ جګړه -

ـــــ **غرمه**:- ټكنه غرمه - ټكنده غرمه -

ـــــ **غوټه**:- (غُ+ټ)(ق اس تـر - مـو - ج - غوټې)سختـه غوټـه - چې پـه اسـانه نهٔ پرانستې كېږي -

ـــــ **غورځكه**:- خاندوره - ش بلو لنبو اور غر غنډېز اور - د اتش لويـه او اوږده لنبه

ـــــ **غوښه**:-(غ+و+خ/ش) (اس - مو - ج - ے) د مرغـۍ هغه بچې چې لاتې وزر نهٔ

وي شوي - ره ځنګوږي -
**ـــ غونبسه**:- سره مچۍ هغه لښې داره حشره چې زېږ رنګ لري - عموماً ورته سره مچۍ وائي -
**ـــ کټهو**:-(ک+ټهو) (ق - اس - مو) د ورو هلکانو يوه لوبه چې خاورې په جولۍ کښې واچوي او په بل ئې غورځوي -
**ـــ لنبه**:-(۱) سور اور - د اور لنبه چې غرغنډے وهي - تکه سره - ښېخي سري -
**ـــ مچۍ**:- (وـــ سره غونبسه)
**ـــ مخه**:-(م+خ)(اس - مو - ج - سري - مخې) يوه بيماري - سرجناد -
**ـــ وله**:-(و+ل) (اس - مو - ج - ولې) د لې يو قسم - چې پاڼې ئې سرې کېږي -
**تهـــ سره شوه**:- د سور کېدل نه فعل دے - د تک سور کېدل تانيث - رنګ ئې ښېخي سور شه - مجازاً ډېر زيات په قهر شوه -
**سره** :- (س+ر)(اس - مو - ج - سرې)(۱) د ډېران خاوره خزله وغېره چې د ښاروو سوتې وغېره هم پکښې شاملې وي - او په پټو کښې د بوټو او فصل د ښبازۍ د پاره اچولے شي (لاود - کهاد) - (۲) په مشينونو جوړه شوې سره چې مختلف قسمونه لري -
**ـــ اچول**:- پټي ته خاوره اچول - د ډېران خاوره ښځله پټي کښې اچول -
**ـــ ورکول**:-(ـــ سره اچول)
**ـــ د سرې اور**:- د سرې اور دننه دننه اور ورو ورو بلېږي - خو لنبه نۀ کوي - او چاته ښکاري نه -

پټه مينه د سرې ننه لړمون خوري
د ښو تر لنبې بد وي اور د سرې (خوشحال)

**ـــ سره**:-(س+ر) (ق - اس - مو - ج - د سرې) د رنګه - لاش -
**ـــ**:-(س+ر) (ق - س) (۱) اعلی - رول نمبر - (۲) هغه غوے چې په قلبه کښې په کار اموخته شوے وي -
**ـــ کول**:- (ق) غوے د قلبې په جغ کښې اموخته کول -
**ـــ کېدل**:- (۱) د غوئي د يوې په جغ کښې اموخته کول - (۲) رول نمبر ختل - په رول نمبر راتلل -
**سره** :- (س+ر) (اس - صف) کره - خالص - (زر وغېره)

جوهري قدروقيمت زده د جوهرو
قلپ سره سره جـــدا کا زرګر زر (خوشحال)

**ـــ ناسره**:- کره او قلپ - خالص او ناخالص -

د نور چا غرض پرې نشته چې صراف وي
هم هغــــــه زده پـــــه سره په نا سره (خوشحال)

**ـــ**:- (س+ر) (وـــ ځره)
**ـــ**:-(س+ر) (حرف جار)(۱) يو ځاے ملګري - هوائي سره راغلل - (۲) يو بل ته - سره څه ووے - (۳) يو بل سره - بيا کله سره وينو - (۴) فوراً سمدستي - د راپريوتلو سره - (۵) نژدې - د کړکۍ سره (۶) ځيني وخت د څۀ په ځاے استعمالېږي لکه: دا کتاب ماسره نشته -
**ـــ اچول**:- يو بل سره په جنګ کول - يا بل سره په جګړه يا مقابله کښې وروستل
**ـــ برابراے**:- يو بل سره برابرے کول - يا بل سره ځان (په څۀ خبره کښې) برابرول
**ـــ بريدکول**:- ګنه ګوڼه جوړول - سره هجوم جوړول - سره وړاندې کول -
**ـــ بند تړتړل**:- (وـــ سره تړون کول) (بندن په اصل کښې د هندي بندهن دے)
**ـــ بيلېدل**:- (ق) د يو بله نه جدا کېدل -
**ـــ پاتېدل**:- (رق) يو بل سره مشابهت لرل - يو بل ته ورته کېدل -
**ـــ پچه اچول**:- يو بل سره يا په خپله کښې هسک اچول قرعه اندازي کول -
**ـــ پخول**:- خپله دښمني او جګړه په ميرانه فېصله کول د خپلې دشمنۍ او عداوت فېصله په نره کول - لکه: ښتنو غليم سره پخے کړے -
**ـــ پرداز کول**:- يو بل سره ښائسته لګېدل -

سترګې وروځې يو نور کښېږدي په مخ کښې
غــــــاښ د شونډې ژبه خولۀ سره پرداز کـا (خوشحال)

**ـــ پوهېدل**:- (ق) د يو بل په حال په زړۀ پوهېدل -
**ـــ ترک وهل**:- (ق) يو بل سره پرېښودل - سره ترک کول -
**ـــ تړاؤ لرل**:- (ق) يو بل سره تړون لرل - ربط لرل رابطه لرل -
**ـــ تړون کول**:- يو بل سره تړون يا معاهده کول - يو بل سره لوظ قول کول -
**ـــ توره وهل**:- يو بل سره تورے وهل -
**ـــ تېروېستل**:- يو بل تېر باسل - يو بل خطا ويستل -
**ـــ ټکوهل**:- اواز سره چاودل - چاودل - ټک چاودل - لکه: هغه منګے ښېخي سرے وو سره ئې ټل وهل -
**ـــ ټکۍ اچول**:- يو بل سره (يو ځاے) سندرې وئيل -
**ـــ ټوقې/ټوکې کول**:- يو بل سره وشتے کول - سره غورے ويشتل -
**ـــ جوړه کول**:- يو بل سره مصلح کول - روغه کول -
**ـــ جوړېدل**:- (۱) يو بل سره موافقت کول - يو بل سره جوړه راتلل - (۲) يو بل سره مناسبت لرل -
**ـــ څېړل يا څېړنه کول**:- يو بل سره عملي بحث کول -
**ـــ حسابول**:- حساب لګول - شمارل -

د ديوان مې کـه ښت ښت سره حساب کړې
تـــر څلوېښت زره بــــه تېر شي په لړ کال (خوشحال)

**ـــ خبره اړول**:- (ق)(۱) يو بل سرے خبرې اترې کول - ګفت وشنيد کول(ق) (۲) جنګ کول - يو بل ته بد رد وئيل -
**ـــ خوراک کول**:- يو بل سره يو ځاے خواړه کول -
**ـــ دپه کول**:-(ق) د يو بل نه ځان بچ کول - د يو بل نه خپله دفاع کول - مخه ګرځول
**ـــ**:-**ددې يا مې له دې ـــ**:-باوجود ددې -
**ـــ درغلنه کول**:- يو بل سره درغلي کول - يو بل سره لنډپاري کول -
**ـــ دښمني کول**:- (ق) (وـــ سره ميرځي کول)
**ـــ دوستي کول**:- (۱) يو بل سر دوستي کول - اشنائي جوړول - (۲) يـو بـل سره رشته قائمه کول - خپلولي کول -
**ـــ ډز وهل**:- (وـــ سره ټک وهل)
**ـــ رخه لرل**:- (رق) په خپله کښې بغض اودښمني لرل -
**ـــ روغه لرل**:- يو بل سره صلحه کول يو بل سره جوړه کول -
**ـــ سټ کول**:- (۱) په خپله کښې تباه و هلاک کول - په خپله کښې مرګ ژوبله کول - (۲) په خپله کښې سوک لته کول - سوک څپېړه کول -
**ـــ سره**:- ورسره ورسره - د يو کار سوه متوازي بل کار
**ـــ سرۀ کېدل**:- يو بل په قهرېدل - يو بل ته په غضب کيدل -
**ـــ سلا کول**:- يو بل سره مشوره کول - د يو بل نه صلاح اخيستل - (سلا د صلاح بدل شکل دے)
**ـــ سندرې وئيل**:- يو بل سره(يو ځاے) بدلې سره ټکۍ اچول -
**ـــ سُورې کېدل**:- راز ښکاره کول - په خپله کښې راز څرګندول -
**ـــ سولول**:- يو بل سره مښل - يو بل سره په مړلو کمه ول -
**ـــ سوله کول**:- يو بل سره صلحه کول - يو بل سره روغه کول - (سوله د صلح يا صله بدل شکل دے)

**ـــ بنۀ**(دي) :۔ یو بل سره روغ ۔ په صلح ۔

**ـــ ضد**:۔(ق)د یو بـل مخالف ۔ د یو بـل ردکوونکـے د یو بـل تنقیص کوونکي ۔ متناقض ۔

**ـــ غرغچ وهل**:۔ یو بل سره ډغره وهل ۔ یو بل سر ټره خوړل ۔

**ـــ غوري کول**:۔ یو بل سره قیصې وئیل ۔ سره قیصه کول ۔ یو بل سره ګپ شپ ویشتل ۔

**ـــ غوري ویشتل**:۔ یو بل سره ټوقې کول ۔ یو بل سره وشتے کول ۔

**ـــ غوړېدل**:۔ یو بل سره پرانستے کېدل ۔ (د خوشحالۍ نه لکه د ګل غوړېدل)

**ـــ غېږسیتل/ایستل**:۔ یو بل له غېږ ورکول ۔ کشتۍ کول ۔

**ـــ قمار وهل**:۔ یو بل سره یا په خپله کښې جواري کول یو بل سره قمار کول ۔ په خپله کښې قمار بازي کول ۔

**ـــ کاني واني کول**:۔ یو بل سره جګړه کول ۔ یو بل سره دنګله کول ۔

**ـــ کتل**:۔(۱) ملاقات کول ۔ ملاوېدل ۔ (۲) یو بل سره مقابله کول ۔

**ـــ کرکه کول**:۔ د یو بل نه نفرت کول ۔

**ـــ کښبوتل**:۔ یو بل سره په جنګ کېدل ۔ په جګړا کېدل ۔ یا په مقابله کښې راتلل

**ـــ کښېښول**:۔ یو شان کول ۔ برابرول ۔ لکه:تا علم او سائینس سره کښېښول ۔

**ـــ ګډول**:۔ (۱) یو بل سره یو ځاے کول (۲) یو بل سره (یو ځاے)په ګډا کول نځه کول ۔

**ـــ ګړېدل**:۔ یو بل سره خبرې کول ۔ یو بل سره صلاح کول ۔

**ـــ ګډېدل**:۔(رق) (۱) د دوو (یا زیاتو) شیزونو سره یو ځاے کېدل ۔ (۲) د ځنې شیزونو یو بل سره مطابق لرل ۔ یو بل سره سمون خوړل ۔

**ـــ لاس ورکول**:۔(ق) یو بل سره یاري کول ۔ د یو بل مرسته کول ۔

**ـــ لګېدل**:۔ (۱) د یو بل سره نښتل ۔ جګړه کول ۔ (۲) یو بـل سره سمون خوړل ۔ مطابقت "بودل"۔

**ـــ لندپاري کول**:۔ یو بل سره درغلي کول ۔ یو بل سره بې وفائي کول۔

**ـــ لور نۀ کول**:۔ (وـــسره مینه کول)

**ـــ لوړل**:۔ (ق ۔ مص تر) په خپل مېنځ کښې قسم خوړل ۔

**ـــ لوظ کول**:۔ یو بل سره وعده کول ۔

**ـــ لیدل**:۔(رق ) یو بل سره لیدل کول ۔ یو بل سره ملاقات کول ۔

**ـــ لیک لېږل**:۔(رق ) یو بل سره خط کتابت کول ۔ یو بل ته چټۍ لېږل ۔

**ـــ مخامخ کېدل**:۔ یو بل ته مخامخ کېدل ۔ مخ په مخ کېدل ۔ د څۀ شـځړې دروغ رښتیا معلومه ؤلو د پاره یو بل سره د خبرو د پاره مخامخ کېدل

**ـــ مستي کول**:۔ یو بل سره مستي کول ۔ یو بل سره ټوقې کول ۔

**ـــ مښل**:۔ یو بل سره مړل ۔

**ـــ معلومول**:۔ ده مقابلې یا د جنګ په ذریعه زور ور او کمزورے معلومول ۔ مقابله کول ۔

**ـــ موښتل**:۔(ق) د دوه ؤ شیزونو یو بل سره نماس کول "بودل" یو بـل سره مښلے کېدل ۔

**ـــ سېرځي کول**:۔(رق) په خپله کښې یو بل سره دښمني کول ۔

**ـــ مینه اخستل**:۔ یو بل سره مینه یا انس پیدا کول ۔

**ـــ مینه کول**:۔(ق) یو بل سره مینه کول ۔ په یو بل مئین کېدل ۔

**ـــ مینه لرل**:۔ یو بل سره مینه محبت لرل ۔

**ـــ نښتل**:۔ یو بل سره په جنګ کېدل ۔ په جګړه کېدل ۔ مشت و ګرېوان کېدل ۔

**ـــ نښتل**:۔(ق) یو بل سره جګړه کول ۔ یو بـل سره معارضـه کـول ۔ سره لګېـدل ۔ مشت و ګرېوان کېدل ۔

**ـــ نښته**:۔ (ن+خ/ش+ت) (اس ۔ مو ۔ ج ۔ نښتې) (۱) یو بـل سره نښـتـل ۔ جنګ

جګړه ۔ مشت وګرېواني ۔ (۲) بحث مباحثه ۔

**ـــ نښلول**:۔ په خپله کښې په جنګ کول ۔ په جګړه کول ۔

**ـــ ورانه کول**:۔(ق) د یو بل مخالف کېدل ۔ دیو بل مخالفت کول ۔

**ـــ ورتله**:۔ یـو بـل سـره یـو ځـاے کېـدل ۔ یـو بـل سـره لګېـدل ۔ لکـه سـره ورغلے(زخم)

**ـــ ورته**:۔ (پ تر ۔ صف) مانند ۔ متشابه د یوبل په شان ۔

**ـــ ورته کېدل**:۔(ق) د یو بل په شان کېدل ۔ د یو بل مشابه کېدل ۔

**ـــ ورنه کول**:۔ سره برید کول ۔ ره ګنړه ګوړه جوړول ۔

**ـــ وړ**:۔(و+ړ) (پ تـر ۔ صـف) مناسب ۔ متناسب ۔ پخپلـه کښـې مناسبت لرونکي۔

**ـــ وشتي کول**:۔ یو بل سره ټوقې کول ۔

**ـــ وعده کول**:۔ یو بل سره وعده یا لوظ کول ۔

**ـــ ویشتل**:۔ یو بل سره یا په خپله کښې تقسیمول ۔

**ـــ یو ځائے کېدل**:۔ (۱) یو بل سره یو ځاے کېدل ۔ جمع کېدل ۔ (۲) جمـــاع کول ۔ کور والے کول ۔

**ـــ تر سره**:۔ تر سره پورې ۔ تر ژوندون پورې لکه:دا خبره ستا تر سره ده ۔

**ـــ تر پربوتل**:۔ د سر نه پورې وتل ۔ سر پرې کول۔

چې ازاده د منکر تر سره پرے ووځي
د فلـک په څېر مې توره د زبان کړه (رحمان)

**تر ـــ کېدل**:۔ تر سره رسېدل ۔ پوره کېدل ۔

**د ـــ دنګل**:۔ د خپل سر پروانۀ کول ۔ خپل سر قربانول ۔

**د ـــ کول**:۔ سر ته رسول ۔ پوره کول۔ انجام ته رسول ۔

**ـــ یو ځائے کول**:۔ په خپله کښې صلاح مشوره کول ۔ په ګنړه سوچ او فکر کول ۔

**ـــ**:۔(س+ر) د سر اضافي یا مجروري شکل ۔ لکه:د سره ، تر سره ، له سره ۔

**اوبۀ ـــ اوړېدل**:۔ خبره یا معامله خپل انتها تـه رسېدل د روغـې یـا د سمون څۀ ځاے نه پاتې کېدل ۔

**تر ـــ تېرول**:۔ د سره اړول ۔ په څۀ کار کښې سستي کول ۔

**تر ـــ تېرېدل**:۔ د سر نـه اوړېـدل ۔ د وخت تېرېـدل زمـا د سره تېره ، خدایـه مـه کړې دنیا ډېره ۔ (متل)

**تر ـــ رسول**:۔ انجام ته رسول ۔ پوره کول ۔

**تر ـــ ګرځول**:۔ د سر نـه چاپېره ګرځـول او یـا صـدقه کـول ۔ (د څۀ شیز د چانـه صـدقه کـولـو پـه وخت ځنې خلق هغـه شیـز دغـې سړي د سـر نـه چـاپېره وګرځوي او بیا ئې چې دا شیز ددۀ د سر صدقه شه)

**ـــ د/له**:۔ (۱) د حساب کتاب یا تقسیم نه وړاندې څۀ شیز اخیستـل یـا بـاور کول ۔ لس منه غنم خو هغۀ د درمند نه د سره یوړل ۔

(۲) بېخي ۔ بالکل ۔ دا خبره خو هېڅو د سره د منلو نۀ ده ۔

**د/له ـــ تېرېدل**:۔ د خپل سر قربانۍ تـه تیارېدل ۔ سر ورکولـو تـه امـاده کېدل ۔ زما د سره تېره خدایه مه کړې دنیا ډېره!

**د ـــ دانګل**:۔ سر په تلي کښې کښېښودل ۔ په څۀ کار کښې خپل سر ورکولـو تـه تیارېدل ۔

**د ـــ کوزېدل**:۔ بار د سره لرې کول ۔ قرض وغېره نه خلاصېدل ۔

**د ـــ کول**:۔(ق) (وـــترسره کول)

**د ـــ نیـول**:۔ د چانـه د رز خبـره ایسـتلو د پـاره د هغـۀ خبـرې نـه اول داسـې خبـره کـول ۔ چې په جواب کښې هغه په خپل جرم وغېره ډاډه شي ۔

**سل ـــ خوشتول او یو (هم) نۀ خرئیل**:۔ هر چالـه زوے ورکـول ۔ طمع ۔ هـر چالـه ورکول خو کار د هیچا نۀ کول ۔

**عقل د ـــ تښتېدل**:۔ عقل (وهوش) نۀ پاتې کېدل ۔ په بند بنا نۀ پوهېدل ۔ وار خطا کېدل ۔

**له ـــ کول**:۔ سر دوباره شورو کول ۔ بیا د نوي سر نه اغاز کول ۔

**له ـــ نیول**:۔ بیا د سره شورو کول ۔

**له یو ـــ تر بل (سره)**:۔ د شورو (شروع) نه تر انجامه پورې ۔ تمامي ۔ ټول ۔

**سرهار** :- (س+ر+ها+ر) (اس) سُرسُر کول ۔ څۀ وړوکے څیز ورو ورو خوزېدل

**سره توبه** :- (ق) (اس ۔ مو) صفائي ۔ روڼه سپېڅلتیا ۔

**سره خوله** :- (س+ر+خُ+ل)(اس ۔ مع) په بلوچستان کښې د یو ځاے نوم ۔

**سرهسکتوب** :- (س+ر+ه+س+ک+تو+ب) (وـــ سرلوړتیا)

**سره غوړګی** :- (س+ر+غ+و+ړ+ګ+ئ) (اس ۔ مع) په بلوچستان کښې د یو ځاے نوم۔

**سرهلال** :- (س+ر+ه+لا+ل) (ق ۔ اس ۔ مذ) د قلبې غړوندے ۔ سریکار ۔

**سره لی** :- (س+ر+ل+ئ) (ق ۔ اس ۔ مو) د قلبې د څرمنې تسمه ۔

**سرهند** :- (س+ر+ه+ن+د) (اس ۔ مع) په بهارت کښې د جمنا او د ستلج د سیندونو په مېنځ کښې د یو علاقه او ښار د شېخ احمد سر هندي (مجدد الف ثاني) د مزار په وجه مشهور دے ۔

**سرهنګ** :- (س+ر+ه+ن+ګ) (ف اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ان) (۱) د جوخ سردار ۔ د لښکر مشر ۔ (۲) کپتان ۔ د جهاز افسر ۔

**سرهوا** :-(س+ر+ه+وا)(ص)(۱) مغرو ۔ کبر جن ۔ زۀ تا پېژنم هوا! واړه تا کړم سر هوا! (۲) بې پروا ۔ لاابالي ۔ هوائي ۔

**ـــ خبره**:۔ (اس ۔ مو) بې بنیاده خبره ۔ هوائي خبره ۔ بې معنٰی خبره ۔

**ـــ خبرې کول**:۔ هوائي خبرې کول ۔ بې بنیاده خبرې کول ۔

**ـــ کول**:۔ (۱) په خوشو خبرو اخته کول ۔(۲) پرېشانه کول۔

زۀ تــــا پېژنم هوا
واړه تا کړه سر هوا (خوشحال)

**ـــ وئېدل**:۔ (وـــ سرهوا خبرې کول)

سر هـــــوا لکـــه تېژن هسې وئېږې
د خپل ځان سره خولۀ پټه جواب سوال (خوشحال)

**ـــ سره ولپښ**:۔ (س+ر+ه+و+ل+پ+ل+خ/ش) (ق اس ۔ مذ)مس ګر ټټار ۔

**سرهیته** :- (س+ر+هے+ت) (ص) سرګردانه ۔ ګنګس ۔

**ـــ کول**:۔ سرګردانه کول (په ډېرو خبرو وغېره د چا) ماغزۀ ګنګس کول ۔

**ـــ کېدل**:۔ سرګردانه کېدل ۔ د مغز و ګنګس کېدل۔

**سرهېرے** :-(س+ر+هې+رے) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ هیري) هغه توکے چې د زنانهٔ په پرتوګ کښې د خښتګ او د پېنڅو تر مېنځه لګولے شي ۔

**سری** :- (س+ر+ئ)(ق ۔ اس ۔ مو)(۱) یو بوټے چې درے څلور مېټ لوړ وي ۔ مېوه ئې "سري" نومېږي ۔ (۲) د سرې مونث ۔ سورے ۔ (۳) ګل بوټے ۔ یو قسم ځنګلي ګلاب د سري ګل ۔ غټ سپین ګل دے ۔

**سری** :- (س+ر+ی) (ق ۔ اس ۔ مو)یو کالے چې زنانه ئې په سر زوړندوي

ـــ:۔(س+ر+ئ) (ق ۔ اس ۔ مو)(۱) د چیلم د نچې بره سر ۔ (۲) زین پوخ۔

څۀ آراراسته پــــه سری سرغ په راتپ ساتۀ شه
که ته شا خوړے تازي اس که شهسوار پاتې نۀ شه (حافظ)

(۳) د قلبې د کار بدل ۔ یا د سړو د کار خدمت بدل ۔ (۴) د چت چجه یا بنبره ۔ (۵) د دېوال سر ۔ چې عموماً غونډ جوړولے شي ۔

**ـــ کول**:۔ د قلبې غوئې د بل د قلبې غوئې سره جوړه کول ۔ چې بل ځل به خپل غوئې په بدله کښې دغې بل سړي له ورکړي ۔ مجازاً ۔ په بدل یو بل سره امداد او کومک کول ۔

ـــ:۔(س+ر+ئ) (اس ۔ مو)جوړې ۔ جوړه ۔

ـــ:۔ (س+رَ+ئ) (وـــ څرۍ)

ـــ:۔(س+ر+ئ) (اس ۔ مو)د لرګي هغه ټوټه چې د ستنې په سر پراتۀ وي او د پاسه پرې تیر کښېښودے شي ۔

**سرے** :- (س+رے)(ص)(۱) سرۀ زر ۔(ق)(۲) "د سور" جمع مونث (د سره جمع) ۔

**ـــ اوسپنې درلودل**:۔سرۀ زر او سپین زر لرل ۔ ډېر شته مند کېدل ۔

**ـــ درلودل**:۔ سرۀ زر لرل ۔ شته من کېدل ۔

**ـــ ډډوزې (ختل)**:۔ د اور لوئې لمبې ۔

اور د خوږو زړو دے چې د غرۀ په ونو بل شۀ
سرې ډډوزې خېژي لـــه ښنتره لـــه چناره (حافظ)

**ـــ غوښې**:۔ (غ+و+خې/شې) کنایه ۔ د یتیم مال ۔(ق)

**ـــ مځکې ښتل**:۔ ډېر زیات حرص کېدل ۔ ډېر حرص کول ۔ ډېر شوم کېدل ۔ لکه:فلانے خو پخپله سرے مځکې ښتي ۔

**ـــ منګلې**:۔ (م+ن+ګ+لې)(۱) منګلې چې په نکریزو (نکریځو)پرې ګل کاري شوے وي ۔(ق) (۲) په نکریزو (نکریځو) سرے کړے منګلے ۔ (۳) د ښکار په وینو د باز وغېره سرے شوې پنجې او پخې ۔ (۴) د قاتل لاسونه او منګلې چې د مقتول په وینو سرې شوې وي ۔

**ـــ می یا مئے**:۔ (م+ئ/ئے)(ق اس ۔ جم) نسک ۔ مسور ۔

**ـــ ورکول**:۔سرۀ زر ورکول ۔ د څۀ څیز زیات قیمت ورکول ۔ مال ورکول ۔ لکه:په دې ټوپک مې ډېرې سرے ورکړې دي ۔

**سرے** :- (س+رے)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ سري)سُور ۔ شګاف ۔ چاود ۔

**ـــ سرے**:۔ (ق ص ۔ مذ ۔ مو ۔ سرۍ سرې)سُورے سُورے ۔

**ـــ سرے کول**:۔ (ق) سُورے سُورے کول ۔

**ـــ سرے کېدل**:۔ (ق) سُورے سُورے کېدل ۔ غارغار کېدل غلبېلبېدل ۔

**ـــ کول**:۔ سُور کول ۔ چول۔

**ـــ کېدل**:۔ سورے کېدل ۔ چاودېدل ۔

**سرے** :- (س+رے) (اس ۔ مذ)(۱) شرے ۔ وړې سرې دانې چې د موشومانو په بدن راخیژي ۔ (۲) غزونه ۔ (ق)

ـــ:۔(س/س+رَه) (اس ۔ مذ) (۱) عنوان ۔ سرخط ۔ (۲) برابر ۔ هم سر ۔ مدمقابل

**ـــ بد**:۔(ق) (اس صف) بړوا ۔

**ـــ شین**:۔ د مرغابو یو قسم دے ۔ سونه ۔

**ـــ وچ**:۔ (اس ۔ صف)سر زوره ۔ وچ وګے (اس)

**ـــ (مروت)**:۔(س+رے)سر بهار ۔ فدیه ۔ سرجارے ۔

ـــ:۔(س+رے) (پ (خ ۔ اس ۔ ج ۔ سري)د سر څادر ۔ پړونے ۔

**سري** :- (س+ري)(ق اس ۔ مو ۔ ج ۔سری)د جامو (جامعو) یو قسم ۔

**سُري** :- (س+ُري)(فهپ تر ص) (۱) ډېر سُر والا ۔ ښکلے سندرې ویونکے ۔ خوش اوازه ۔ (۲) خوند ناکې خبرې کوونکے ۔

**سریاب** :- (س+ر+یا+ب)(اس ۔ مع)په بوچستان کښې د یوې علاقې نوم ۔

**سریاني** :- (س+ر+یا+ني)(اس ۔ مو ۔ مع)د پښتنو د یوې قبیلې نوم ۔

ـــ:۔(سُ+ر+یا+ني) (ع اس ۔ مو)د سریا (سیریا۔شام) د ملک پخوانۍ ژبه (ځبه)۔

**سریبرد** :- (س+ري+ب+ر+د)(ق ۔ مذ)ټول ۔ تمامي ۔

**ـــ خوړل**:۔ (ق) ټول خوړل ۔ تمام (هر څۀ) خوړل ۔

**سریته** :- (س+ري+ت)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ تې)هغه وینځه چې د کوروالي د پاره وي په عربۍ کښې ورته سریه وائي ۔ هغه وینځه چې اولاد ئې شوے وي

**سریخ** :- (س+ري+خ)(اس ۔ مذ) یو قسم ونه ۔ وــــ سرېښ ۔

**سري خود** :- (س+ري+خُ+د)(ص)په خپل سر یا پپ خپله مخه ۔

ـــــ **کار کول**:۔ په خپله خوښه یا رائے کار کول بې(د چاد) مصلحته کار کول۔

**سریخه** :- (س+رې+خ)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ سریخې)د وربل د پرتوګ هغه پټه چې د وریښمو ګلونو پرې شوې وي په دغه پرتوګ کښې قیمتي څیز همدغه سریخه وي۔

**سرېدل** :- (س+رې+د+ل)(وــ څرېدل)

**سریر** :- (س+رې+ر)(ع ۔ اس ۔ مذ)تخت ۔ بادشاهي تخت۔

که خوښي ده په جهان کښې د لیدو ده
نــــــــه خوښي د بادشاهۍ د سریر (خوشحال)

**سري سلطان** :- (س+رې+سُ+ل+طا+ن)(ق ۔ اس ۔ اس)د یوې لوبې نوم ۔ سویلس

**سریښ** :- (س+رې+خ/ش) (اس ۔ م ۔ ج ۔ ونه) د مشهورې ونې نوم ۔ چې ډېر لوړه ارته پلنه وي ۔ اوګور سورے لري ۔ (ار:سرس)

ـــــ:۔(س+رے+خ/ش) (اس ۔ جم) ګوند ۔ سلیبتس ۔ مختلف قسم یسداره ماده ۔چې نورڅیزونه پرې پېدندولے او ښلولے شي۔

ـــــ **ناک**:۔ (نا+ک)(ص ۔ مذ ۔ مو ۔ ناکه ۔ ج ۔ کې) سریښ دار ۔ سلیښناک ۔ هغه څیز چې بل څیز سره ښلي او چسپان کېږي۔

**سریښم** :- (س+رې+خ/ش+م)(ق ۔ اس ۔ جمع) یــو ښښــتونکے څیــز ده چــې لیندۍ ساز ئې پکاروي ۔ (فارسي ۔ سبلت)

**سرېښن** :- (س+رې+خ/ش+ن)(ص مذ ۔ مو ۔ سریښنه ۔ ج ۔ سرېښنې) (وــ سرېښناک)

**سرېښناک** :- (س+رې+خ/ش+نا+ک) (اس ۔ صف) سرېښند ۔ سلیښ لرونکے ۔ سلېښناک ښښتونکے ۔

**سرېښند** :- (س+رې+خ/ش+ن+د) (اپ ۔ صف) سېلښ لـرونکے ۔ ښښـتونکے ۔ سرېښناک ۔

**سرېښنه** :- (س+رې+خ/ش+ن)(ق اس ۔ مو ۔ ج ۔ سریښنې)د پتون بره سر ۔ بزرات

**سرېښول** :- (س+رې+خ/ش+و+ل) (مص)سرېښ لګول ۔ په څۀ څیز باندې د ښلولو د پاره سرېش یا ګوند وغېره لګول۔

**سرېښونګ** :- (س+رې/رې+خ/ش+و+ن+ګ) حمص) (وــــــ سرېښونه)

**سرېښونه** :- (س+رې/رې+خ/ش+و+ن)(حمص)(۱) د سرېش یا سلېښ لګونه (۲) چسپان کونه ۔(ق)

**سرېښونکے** :- (س+رې/رې+خ/ش+وو+ن+کے)(اس فا ۔ مذ ۔ ج ۔ وونکي) (۱) سـرېش ۔ ګونـد یـا سـلېښ لګـوونکے (۲) ښښـلوونکے چسـپان کوونکے ۔ (ق)

**سرېښېدل** :-(س+رې/رې+خې+ښې+د+ل) (مص)(۱) سرېش ۔ ګونـد یـا سلیښ لګېدل سلېښناک کېدل ۔(۲) ښښتل ۔ چسپان کېدل ۔ (ق)

**سرېښېدنګ**:- (س+رې/رې+خې/ښې+د+ن+ګ)(ق ۔ حمص)(وسرېښېدونه)

**سرېښېدنه** :-(س+رې/رې+خې/ښې+د+ن) (حمص)(۱) سریښ ۔ ګوند یا سلېښ ۔ورپورې کېدنه ۔ (۲) چسپان کېدل ۔ (ق)

**سرېښېدونکے** :- (س+رې/رې+خې/ښې+دو+ن+کے)(اس ۔ مف ۔ ج ۔ کي) هغه څیز چې سریښ یا ګوند وغېره ورپورې کېدے شي۔

**سري صاف** :- (س+رې+صا+ف)(اس ۔ مذ)(۱) یو قسم پخوانے ټوکے چې ډېر قیمتي او د ململو په شان ؤ د پټکي د پاره استعمالېږېدۀ ۔ (۲) صافي یو قسم کپړه چې د چاې یا د عرق یستلو د پاره پکارېږي۔

**سریع** :- (س+رې+ع)(ع ۔ صف ۔ مذ) جلتـي کـوونکے ۔ تېـزے زر زر کـار کوونکے ۔

**ســریع الاجابــت** :- (س+رې+عُ+ل+ا+جـا+ب+ت)(ع تـر ـ صـف)زر زر جـواب ورکونکے ۔ هغه (هستي) چې د (دعا) جواب ورکولو د پاره هر وخت تیار وي۔

**سریع الالتهاب** :- (س+رې+ع+ا+ل+ا+ل+ت+ها+ب)(عف ۔ تر صف) هغه څیز چې زر اور اخلي۔

**سریع التاثیر** :- (س+رې+ع+ت+تا+ثي+ر)(ع تر ۔ صف)زر اثر کوونکے ۔ زور د اثر ۔

**سریع الزوال** :- (س+رې+ع+ز+ز+وا+ل)(ع تر ۔ صف)زر ضائع کېدونکے ۔ هغه (څیز وغېره) چې زر خپل مقام نۀ پرې ووزي۔

**سریع الفهم** :- (س+رې+ع+ل+ف+ه/ۀ+م)(ع تر ۔ صف)زر پوهه کښې راتلونکے ۔ زور د فهم ۔

**سریع الهضم** :- (س+رې+ع+ل+ه+ض/ض+م)(ع تر ۔ صف)زر هضمېدونکے ۔ زور د هضم ۔

**سریعانه** :- (س+رې+عا+ن) (صف)جلتي سره ۔ زر زر ۔

**سري کار** :-(س+رې+کا+ر) (اس ۔ مذ)(وــــ سرهلال)

ـــــ:۔ (س+رې+کا+ر)(اس ۔ مذ)سرو کار ۔ تعلق ۔ واسطه ۔ ربط ۔

ـــــ **لرل**:۔ تعلق لرل ۔ واسطه لرل۔

په هغۀ جهان به خلاص وي لـه عزابه
کــــه دلې ئې سري کار وي له کتابه (خوشحال)

**سریله** :-(س+رې+ل)(ق ۔ اس ۔ مذ)سره خاره ۔

ـــــ:۔ (س+رې+ل)(ه ۔ صف) سُرناک ۔ چې اوازئې خوږ وي ۔ خوش اوازه

**سرے ناصر** :- (س+رے+نا+ص+ر)(اس ۔ مع) د ناصرو یوه ځانګه ده ۔ چې غلزئ پاونده دي۔

**سرینده** :-(س+رې+ن+د)(اس ۔ مو ۔ ج ۔سریندې) (۱) مشـهور سـاز ۔ چـې اردو کښې ورته سارنګي وائي ۔ تارونه لري ۔ او په لیندۍ (کمانچه) غږولے شي (۲) مجازاً مانده ډنګر څـاروے چـې د ک مـذورتیا لـه کبلـه رړدي (ق) ۔ (۳) مجازاً هروخت ژړېدونکے ماشوم۔

ـــــ **مار**:۔(ما+ر)سرینده غږونکے ۔ د سرېندې وهلو ماهر ۔

ـــــ **واله**:۔د سرینديې مالک د سرینديې غږونکے ۔

ـــــ **وهل/غږول**:۔(۱) د سرینديې ساز غږول په سرینده نغمه یا سندره غږول ۔ (۲) (ق) د مانده او د ډنګر څاروي د کمزورتیا له کبله رېږدېدل ۔ ډېر زیات مانده او ډنګر کېدل ۔ (۳) د ماشوم هر وخت ژړل ۔ (۴) څۀ خبره چاته (بیا بیا) اورول ۔

**سریندے** :- (س+رې+ن+دې)(اس ۔ مـذ ۔ ج ۔ ي)ســندر غــاړے ۔ ســندرې ویونکے ۔

**سري نګر** :-(س+رې+ن+ګ+ر)(اس ۔ مع ۔ مذ) د کشمیر دارالحکومت چې تر مودو مودو پرې د مسلمانانو بادشاهي وه ۔ اوس پرې د هندوانو (ناجائزه) قبضه ده ۔

**سري ورخ** :-(س+رې+و+ر+خ)(اس ۔ مذ) (۱) د اوبـو ۔منبـع ۔(۲) هغـه سـرے چې ټیپې ئې د اوبو سر(منبع) ته نزدې وي ۔ (۳) د کار شورو (شروع) ۔اغـاز ۔ (ق)

**سرے یورے** :- (س+ر+و+رے)(ق ۔ ص)ظاهر ۔ ښکاره ۔

**سریه** :- (س+ر+ي)(ق ۔ اس ۔ مو)د نمر څوکه د غر بریې سر چې د ختو په وخت په اول سر کښې راښکاره شي۔

ـــــ **وهل**:۔د راختو په وخت د غر څوکه(برنۍ ژۍ) راښکاره کېدل۔

ـــــ:۔(س+ر+ي) (ع ۔ اس ۔ مـو)(۱) د پنځـو کسـانو نـه واخلـه تـر څلورو سوو

سپاهیانو پوري د فوځ دسته. (۲) اسلامي اصطلاح کښې هغه لښکر چې حضرت محمد مصطفیٰ ﷺ به چېرته د غزا د پاره لېږهٔ. خو په خپله به ورسره نهٔ وو.

——:-(سُ+ر+ي) (ع. اس. مو)هغه وينځه چې مالک به ورسره کور والے کولو.

**سړاول** :-(س+ړا+و+ل)(و—— سړول)

**سړبن** :- (س+ړ+ب+ن)(اس مع فه)(۱) د پښتني رواياتو مطابق د پښتنو د څنو قبيلو غور نيکهٔ. (۲) هغه علاقه چې سړبني پکښې اباد دي.

يو کتاب په سړبن کښې چا ونهٔ کړو
بې رحمانه چې ئې جوړ کړو دا کتاب (رحمان)

**سړبنے** :- (س+ړ+ب+نے)(اس مع. مذ. مو. ى)هغه سړے چې د سړبن کومې قبيلې سره تعلق لري.

**سړبني** :- (س+ړ+ب+ني)(اس مع)هغه قبيلې چې د سړبن نيکهٔ له اولاد دي. د سړبن اولاد. هغه قبيلې چې د سړبن نيکهٔ له اولاد دي. د سړبن اولاد. هغه وګړي چې د بره ذکر شوو قبيلو سره تعلق لري.

**سړبن** :- (س+ړ+ب+ن)(و——څړبن)

**سړپ** :- (س+ړ+پ) (اس. مو. مذ)شړپ. په څهٔ نرم ځاے کښې د څهٔ څيز پرېوتو اواز.

**سړپول** :-(س+ړ+پ+و+ل) (مص)بې ترتيبه خوراک کول.

**سړپونګ** :- (س+ړ+پو+ن+ګ)(ق. حمص)ماستهٔ وغېره د خوړلو په وخت د خُلې اواز پېدا کونه.

**سړپونکے** :- (س+ړ+پو+ن+کے)(فاع. مذ. سړپوونکي. مو. سړپونکې) بې ترتيبه طريقې سره ماستهٔ وغېره خوړونکے.

**سړپهار** :- (س+ړ+پ+ها+ر)(اس مو. مذ)د خوراک په وخت د خُلې اواز

**سړپې** :-(س+ړ+پې)(اس مو. مذ)(و—— سړپهار)

**سړت** :-(س+ړ+ت) (اس. صورت)په مرئ کښې نښتې ژړا.

——سړوت ژړل:- اِص. په مرئ کښې نښتې ژړا کول.

**سړتيا** :- (س+ړ+ت+يا)(اس. مو. ج. ګانې)سوړوالے. يخ والے.

**سړځد** :- ——(ت)س+د) (پ تر. اس. مذ) يخوالے. يخني. سوړوالے.

**سړزوي** :- (—— ز+وي)(اس. مو)(و—— سړزي)

**سړزي** :- (س+ړ+زي)(اس. مو. ج. ى)يخني. سوړوالے. سارهٔ.

——د سړزي موسم:- د يخنۍ موسم. ژمے. ځجے.

**سُړسُړ کول** :- اِص. د يخنۍ به د خُولې نه د سُړسُړ د سي سي او سوسو اوازونه راوتل.

**سړک** :- (س+ړ+ک) (اس. مذ. ج. سړکان. ونه) (۱) هغه لويه لار چې د سورلۍ څيزونه لکه ټانګې موټرې. بسونه وغېره پرې تلے شي. (۲) هغه لويه لار چې د موټرو بسونو وغېره د پاره پخه کړے شوے وي.

——پخول:- لويه لار پخول. د ټانګو موټرو بسونو وغېره د پاره د کاڼو وغېره نه پخه لار جوړول.

——جوړول:-(ب تر. مص)لويه لار جوړول. د ټانګو موټرو وغېره د پاره پلنه او هواره لار جوړول.

——د ګاډي:-(د ګا+ډي) (پ تر. اس. مذ) د رېل ګاډي د پاره جوړ شوے د پاټلو (پټرو) لار.

——پوخ:-(پو+خ)(مو تر. اس. مذ. ج پاخهٔ سړکونه) هغه لويه لارچې ټانګې موړې وغېره پرې ځي او پوخ کړے شوے وي.

——کچه:-(ک+چ)(پ تر. اس. مذ. ج. ونه) هغه لار چې ټانګې موټرې وغېره خو پرې تلے شي. خو پخه کړے شوې نهٔ وي.

**سړوبه** :- (س+ړو+ب)(پ تر. مو. ج. ے)د سړو اوبو د کښېښودو لوښے. يا هغه لوښے چې اوبهٔ پکښې سړې پرتې وي. صراحي.

**سړوبے** :- (س+ړو+بے)(اس. م. ج. بې) صراحي. کونجې. اوبلښے.

**سړوبے** :- (س+ړو+بے)(اس. مذ. بې) وړوکے حوض.

**سړوپ** :- (س+ړو+پ)(ص مذ)بالکل. بېخي. سروپ.

——لېونے:-(لې+و+نے) سروپ لېونے. بالکل لېونے. پوره لېونے.

**سړوتے** :- (س+ړو+تے)(اس. مذ. ج. ي)د "سړے" تصغير دے. وړوکے سړے. د سپکوالي د پاره وئيلے شي.

**سړوړمے** :- (س+ړو+ړ+مے) (پ تر. صف. مذ. ج. ي)داسې څيز چې سړه وړمه ترې پورته کېږي. خراب شوے. بد بويه ګنده شوے. سوړ بويه.

**سړوښه** :- (س+ړو+خ/ش)(اس. مو)معتدله هوا.

**سړوکے** :- (س+ړو+کے)(اس. مذ) يو قسم دارو دي چې د يخنۍ د پاره شربت سره خوړلے شي. (نوے اختراع).

**سړول** :- (س+ړ+و+ل)(مص)(۱) يخول. د څهٔ څيز نه ګرمي لرې کول. تاؤ ايستل. (۲) د چا غُصه لرې کول. (۳) جنګ فيصله کول. (۴) (عوام) کوروالے (چې د ښځې تاؤ ووزي).

**سړونګ** :-(س+ړ+و+ن+ګ) (ق. حمص)(و—— سړونه)

**سړونګه** :- (س+ړو+ن+ګ) (و——څړونګه)

**سړون ليک** :- (اس. مذ. ج. ونه)سړون پاڼه. ل تذکره.

**سړونه** :- (س+ړ+ؤ+نه)(حمص)يخونه. ګرمي لرې کونه. تاؤ ايستنه.

**سړونے** :-(س+ړو+نف)د توپې سيخ.

**سړوونکے** :-(س+ړ+وُ+ن+کے) (فاع. مذ. ج. سړووکي. مؤ. سړوونکې) يخوونکے. ګرمي لرې کوونکے. تاؤ ايستونکے.

**سړه** :- (سَ+ړَ)(پ. صف)(و—— څړ)

——لار:-(لا+ر)(و——څړه خار)

**سړه** :- (س+ړ)(پ. صف)(۱) (د سوړ مؤنث) يخه. چې ګرمي تودوالے نهٔ لري (۲) د تېر وخت يخه شوے. (د تازه په مقابله کښې) لکه سړه ډوډۍ.

——توده:- (تو+د)(پ تر. مو. ج. سړې تودې)(۱) د سوړ تود تانيث دے. يعني يخ او ګرم. (۲) مجازاً هر قسم موسم يا وخت. (۳) ښهٔ وخت او خراب وخت عېش وخت او تکلف.

——توده تېرول:-اِص. سختې نرمې تېرول.

——خبره:-هغه خبره چې اورېدونکے پکښې دلچسپي نهٔ لري خشکه خبره. سړه

——خُوله:-اص ——خوا:- (خ+وا)(پ تر. اس. مو)(۱) هغه علاقه يا سيمه چې آب و هوا کښې يخه وي. يخه علاقه يخه منطقه. (۲) مجازاً هغه سړے چې په جزباتو کښې ئې جوش او ګرمي نهٔ وي يا ډېر زر نهٔ په قهرېږي. زړهٔ مړے (۳) دلګير. خفه.

——خوا کار کول:-(پ تر. مص)په مړ زړهٔ کار کول. کار کول خو پکښې دلچسپي نهٔ لرل. بې دلئ سره کار کول. په نا زړهٔتيا کار کول.

——خوله:-(خ+و+ل)(پ تر. اس. مذ. ج. سړے. خولې) يخه خوله. هغه خوله چې په سړې د وېرې (يا د ډېرې ملامتيا) له کبله راماته شي.

——ډوډۍ:- (ډو+ډ+ۍ)(۱) يخه شوے ډوډۍ. باسي ډوډۍ. (۲) مجازاً لړ يا معمولي بدل (څهٔ ګوګوشتو خو نهٔ دے چې په سړه ډوډۍ به وشي) (متل)

——سا:-(۱) سوړ اسويلے. (۲) حوصله.

**ــــ ساوکنبل**:سوړ اسوېلے کول۔

**ــــ سره**:۔ (س+ر)(اس۔مو) سړه لړې ببړه۔

**ــــ سماواتې**:۔ (پ تر۔مو) سړه سمخه۔قلاره قلاري۔ بېخي خاموشي

**ــــ سمخه**:۔(س+م+خ) (پ تر۔صف)(۱) بالکل یخه۔ بېخي یخي۔ (۲) قلاره قلاري۔خاموشي۔چپ چُپیا۔

**ــــ سنا**:۔(س+نا) (وــــ سړه سماواتې)

**ــــ سیمه**:۔ (سي+م)(اس صف۔مؤ۔ج۔سړے سیمے)ډېره یخه منطقه یا علاقه ۔سړه خوا۔سړته۔

**ــــ ککړه**:۔ (ک+ک+ړ) (پ تر۔م) بالکل یخه۔ بېخي سړه۔

**ــــ کځ**:۔(ک+ځ)(پ تر۔مو)(۱) د ونې وچه څانګه ۔(۲) د غر څوکه۔

**ــــ لړه**:۔(ل+ړ) (پ تر۔اس۔مو۔ج۔ے) د بدن رېږدندے۔چې عموماً د ملېریا د تبې نه او په سړې راځي۔لرزه۔رېږے۔

**ــــ لړه راتلل (په چا)**:۔ د ملېریا د تبې نه اول په بدن رېږدندے راتلل۔رېږدیدل۔

**ــــ لوه**:۔(ل+و) (پ تر۔مو)د یخنۍ تبه۔د سړه لړې تبه ملېریا۔

**ــــ لوے**:۔ سړه لړه۔د تبې نه وړاندې سخته یخني کېدل۔او لړزېدل۔لرزه۔

**ــــ ورځ**:۔(و+ر+(د) ز)(پ تر۔مو۔ج۔سړې ورځې) یخه ورځ۔داسې ورځ چې پکښې ګرمي نۀ وي۔

**ــــ په ساه** (وساه)۔ یخه ساه۔هغه دم چې تود والے پکښې نۀ وي۔مجازاً په قلار په اطمینان په حوصله۔

**په ــــ ساه کار کول**:۔ په اطمینان سړه کار کول۔په حوصله او په قلار کار کول۔

**سړې سړې خولې پرې راتلل** :- ویرې اخستل۔کمزورے کېدل۔

**سړه ته** :- (ق) س+ړ+ت) (اس۔مو۔ج۔تے) هغه علاقه یا منطقه چې ډېره سړه (یخه) وي۔

**ــــ سړه لوبې**:۔(س+ړ+لُ+بے)ساوتې۔رېږدولې تبه۔سړه لوې د سړه لړې تبه۔ملېریا۔

**سړۍ** :- (س+ړ+ۍ)(پ اس۔مو)د "سړے" تانیث۔ښځه۔(عام نۀ استعمالېږي)

**سړۍ** :- (س+ړ+ۍ)(وــــ څړۍ)

**سړے** :- (س+ړے)(اس۔ مذ۔ج۔ي)(۱) نر بنې ادم۔(۲) د ښو اخلاقو خاوند لکه :سړ شه۔(۳) نوکر۔ملازم۔

**ــــ کول**:۔ (۱) بنیادم کول۔په تمیز کول۔(۲) نوکر کول۔

**ــــ کیدل**:۔ (۱) بنیادم کیدل۔تمیز زده کول۔ (۲) نوکر کېدل۔

**سړي** :- (س+ړي)(اس)(۱) د سړي جمع۔د یو نه زیات کسان۔(۲) "د سړي" مجروري یا اضافي صورت لکه د سړي زوے۔

**ــــ بوټے**:۔ (بو+ټے)(اس۔ مذ۔ج۔بوټي) مردم ګیاه۔(ن رق)د یو بوټي نوم۔یو قسم وابښۀ۔

**ــــ توب**:۔ (تو+ب)(پ مذ)انسانیت۔خوش اخلاقي۔

**ــــ خور**:۔ (خو+ر)(پ تر۔صف۔مو۔خوره)(۱) د سړي یا د سړو خوړونکے۔ادم خور۔ (۲) مجازاً ډېر حرصي۔(۳) مجازاً ډېر بې انصافه۔ظالم

**ــــ سر**:۔(س+ر)(پ تر)د هر یو سړي په برخه۔هر یو سړي له۔

**ــــ وښ**:۔ (و+خ/ش) (پ تر)د انسان په شان۔د ښۀ سړي په شان۔

دخول ډېر خر کا ،خوراک ډېر ستور کا
په سړي وښ کښې سړے خپل کار کا (خوشحال)

**پر ــــ تېرېدل**:۔ په چا تېرېدل۔مجازاً تجربه کېدل۔

**پر ــــ درېدل**:۔ په چا سره درېدل۔د خپل اشنا یا تشنه دار سر د تکلیف په وخت کښې مدد او مرسته کول۔

**پر ــــ ورتلل**:۔په چا تېرېدل۔تکلیف او مشقت تېرول۔

**سړې** :- (س+ړې) (صف۔مؤ) (د سر جمع ده) یخې۔

**ــــ تودې**:۔ (پ تر۔موج)(۱) یخې او ګرمې۔(۲) مجازاً هر قسم وختونه ،ښۀ وختونه او بد وختونه۔عېش ارام۔او تکلیفونه۔هر رنګه حالات۔خوشحالي او **غمونه** (د سړه توده جمع ده)

**ــــ تودې تېرول**:۔ (پ تر۔ص)هر قسم ورځې تېرول۔د ارام او د تکلیف دواړه قسمه وختونه تېرول۔

**ــــ تودې لیدل**:۔ (پ تر۔ص)هر قسم وختونه یا حالات لېدل۔د هر قسم پېښو تجربه لرل۔تجربه کار "بودل"۔

**ــــ سړې خولې راماتېدل (په چا)**:۔ یخې یخې خولې راتلل۔ډېرې زیاتې د وېرې علامه ده۔څکه ډېره زیاته وېره راتلل (په چا) (د ډېرې زیاتې شرمندګۍ او ندامت ملامته کېدو په معنٰی هم راځي)

**سړېچن** :- (س+ړې+چ+ن)(پ۔صف۔ مذ۔مو۔ه) (۱) د سوړ طبیعت خاوند۔هغه سړے چې جذباتي نۀ وي۔یا زر غُصه کېږي۔(۲) یخ زنے۔هغه کس چې د یخنۍ طاقت نۀ لري۔

**سړېدل** :- (س+ړې+د+ل)(مص)(۱) یخېدل۔ګرمي وتل۔(۲) جنګ جګړه وغېره ختمېدل۔(۳) غُصه کمېدل۔یا نۀ پاتې کېدل۔(۴) نفساني خواهش نۀ پاتې کېدل۔(۵) ساه وتل۔مړ کېدل۔

**سړېدنګ** :- (س+ړې+د+ن+ګ)(ق۔حمص)(وــــ سړېدنه)

**سړېدنه** :- (س+ړې+د+ن)(حمص) یخېدنه۔ګرمي لرې کېدنه۔تاؤ کمېدنه۔

**ســـړېدونکے** :- (س+ړې+دو+ن+کے) (صف۔ مذ۔ج۔سړېدونکي۔مو سړېدونکې) یخېدونکے۔تاؤ کمېدونکے۔ګرمي لرې کېدونکے۔

**سړېدۀ** :- (س+ړې+د)(حمص)(وــــ سړېدنه)

**سړېتون** :- (ق) عالم ناسوت ، د اجرامو او دا اجسامو عالم۔(نوې اختراع)

**سړېکه** :-(س+ړې+ک)(وــــ څړېکه)

**سړیه** :- (س+ړي+ه)(پ۔ندائیه)اے سړیه! تکیه کلام دے۔بل سړي ته په مخاطبه کښې وئیلے شي۔لکه: (ما په زړۀ کښې وې سړیه کار دې خطا که!)

**سزا** :-(س+زا)(ف اس۔مو۔ج۔ګانې)د څۀ غلطۍ یا د جرم په بدله کښې تکلیف وهل۔جرمانه۔قېد وغېره۔

**ــــ موندل**:د څۀ جرم یا خطا په بدله کښې څۀ تکلیف موندل۔

**ــــ ورکول**:۔ د څۀ جرم یا د وراني په بدله کښې سزا ورکول۔(لکه:وهل ، بندي کوي۔جرمانه کول۔وغېره)

**ــــ یاب**:۔ (یا+ب)(اس۔صف۔ مذ۔مو۔یابه)هر سړے چې د جرم په بلده کښې ئې سزا موندلې وي۔(د وړاندې نه) مجرم۔

**ــــ یافته**:۔ (پ تر۔ص) هغه کس چې د څۀ جرم په بدله کښې ئې سزا موندلې وي۔یعني وړاندې ئې هم جرم کړے وي۔

**ســـزا** (۲) :- (سَ+زا)(ف ۔اس)لائق۔قابل۔(عموماً په مرکباتو کښې استعمالېږي)

**ــــ وار**:۔ (وا+ر)(ف تر۔اس۔ مذ۔مو۔ه)لائق۔قابل۔اهل۔جوګه۔

**سزاوار کېدل** :- لائق کېدل۔قابل کېدل۔د څۀ کار یا د عمل د پاره موزون یا مناسب یا لائق کېدل۔

**ســـزاؤل** :-(س+از+ؤ+ل)(ت۔اس۔ مذ)د محصول یا د مالئې وغېره وصولوونکے۔عهدیدار۔محصول غوډه ونکے۔

**سزني** :-(س+ز+ني)(اس۔مو۔ج۔ۍ) هغه پټۍ چې چې ماشوم پرې په اوړنیکښې د نغښتلو نه پس تړلے شي۔سڅنې۔

**سږ** :- (س+ګ/ږ) (اس۔ مذ)د مرۍ اواز۔

**سږ** :- (س+ګ/ږ)(پ۔سابقه)(۱) ددې کال۔دوران کال (دپاره استعمال شوز

دے). (۲) عموماً کال سره يو ځاے راځي يعني سرِ کال يا سخ کال۔ معنٰی ئې هم دغه ده يعني امسال روان کال۔

**ــــ کال**:۔ (پ تر۔ مذ)سخ کال۔روان کال۔

**سرا**: ۔ (س+ګا/ژا) (اس صورت۔ مو)(وــــ سرِهار)

**سرِکے**: ۔ (س+ګ/ژ+کے)(اس۔ مذ)(وــــ سرِهار)

**سرِګے**: ۔(س+ګ/ژ+ګے)(اس۔ مذ۔ ج۔ سرِګي)(وــــ ځېرِګے)

**سرمګ**: ۔ (س+ګ/ژ+م+ګ) (اس صف۔ مذ)(وــــ سرمه ور)

**سرمه**: ۔ (س+ګ/ژ+مه)(اس۔ مؤ۔ ج۔ سرمې)سپېرمه۔

**ــــ تر دوو سرمو کېدل**:۔(۱) تر پوزې راتلل۔ډېر تنګېدل۔(۲) ډېر خوړل۔دومره خوراک کول چې نور پکښې نۀ ځائېږي۔

**ــــ ور**:۔(و+ر)(اس۔صف۔ مذ۔مو۔ ه)هغه کس چې د پوزې سپېرمې ئې ارتې وي۔سپېرماتو۔

**سرِنے**: ۔(س+ګ/ژ+نے)(اس۔صف۔ مذ۔ ج۔لي۔مو۔نی)د سخ کال، دوران کال (د سخ کاله تۀلاد سرِني هرګيد رِے!) (متل)

**ــــ کال**:۔دا کال۔روان کال۔

**سرول**: ۔ (س+ګ/ژ+و+ل)(مص مت)شغول۔سغول۔د ټوپک ګولۍ یا کاڼې وغېره په تېزۍ سره غورځول۔

**سره**: ۔ (س+ګ/ژ)(اس۔مو۔ ج۔ ے)غرسنې چيلې۔غرځنې د غرۀ لړه۔

**سرهار**: ۔ (س+ګ/ژ+ها+ر) (اس۔صورت)شغهار۔د ګنوغشو د ويشتلو په شان اواز۔سنګهار۔سيوهار۔(اق)

**سرے**: ۔ (س+ګے/ژے)(اس۔ مذ۔ ج۔ ی)پرپوس۔د سينې دننه يو اندام شرے

**ــــ پخول(چاله)**:۔اِص۔کنايه: ډېر زيات تنګول۔

**ــــ پخېدل**:۔اِص۔(پ تر۔مص) کنايه:ډېر زيات تنګېدل۔ويزاره کېدل۔

**سرِي**: ۔ (س+ګي/ژي)(اس۔ج) (۱) د "سرِے" جمع ډېر سرِي۔(۲) د "سرِے" مجروري يا اضافي شکل۔لکه د سرِي نه، يا د سرِۀ،

د ــــ باچائي(با+چا+ئي)

د ــــ بادشاهي(با+د+شا+هي)غمجن حالت۔غم جنه ورځ۔د خفګان وخت۔کله د زړۀ بادشاهي وي کله د سرِي۔(متل)

**سرِېدل**: ۔ (س+ګې/ژې+د+ل)(مص لا) سغېدل۔شغېدل۔

د ټوپک ګولۍ يا کاڼي وغېره ډېر په تېزۍ سره غورزېدل۔

**سسا**: ۔ (س+سا)(وــــ ځځا)

**سسپار**: ۔ (س+س+پا+ر)(اس۔مو۔ج۔رې) د يوې اسپنيزه تېرۀ برخه چې زمکه پرې شلوي۔پاله۔

**سسپار**: ۔د ــــ نه وراندې پښه کښېښودل:۔ بې موقعې کار کول په خبره د پوهېدلو نه اول خپله خبره (تنقيد وغېره) شورو کول۔

**سسپاره**: ۔ (س+س+پا+ر) (اس۔ مذ۔ ج۔ ونه)(وــــ سسپار)

**سسپنډ**: ۔ (س+س+پ+ن+ډ)(انګ صف۔ مذ۔ مو۔ ه)معطل۔زورِنډ۔ملتوي۔ مغزول ځند کرِے۔

**ــــ کول**:۔ زورِوندول۔مجازاً۔په نوکرۍ کښې معطل کول۔معزول کول۔

**سسپنس**: ۔(س+س+پ+ن+س)(انګ۔اس۔ مذ۔ ج۔ونه)انتظار۔توقف۔ حېرت حېرانتيا په دوو کښې حېراني۔

**سسپوره**: ۔ (س+س+پو+ر)(اس۔مو۔ج۔رې)ګېنترې۔د زمکې د کنستلو اله چې دوه سرونه لري۔ګېنتې کودالۍ۔

**سسپېرِکے**: ۔(وــــ ځځپېرِے)

**سست**: ۔ (س+س+ت)(ف۔صف۔ مذ۔مو۔ ه)(۱) د کلک يا د "راښکلے" صند۔ يعني چې زور يا په اسانه پرانستے شي۔نرم۔ (۲) په کار کښې نرم۔ چې زر زر کار نۀ شي کولے۔(يا نۀ کوي)۔ناراسته په کار کښې لټ (۳)(عوام) کوني۔ګانډو۔(۴) نامرد۔شهوت کښې کمزورے۔

**ــــ اعتقاد**:۔ (ا+ع+ت+قا+د) (عف۔تر۔ مذ۔مو۔ ه) هغه کس چې عقده ئې مضبوطه نۀ وي۔او زر خپله عقيده بدلوي۔

**ــــ پست**:۔ (پ+س+ت)(پ۔صف۔ مذ۔مو۔ته پسته) پست تابع مهمل دے۔ بالکل سست۔ډېر زيات سست ډېر ناراسته۔

هنــرونــه ئې عېبونه لس خوشحاله

د سرِي چې چار د بخت شي سته پسته (خوشحال)

**ــــ پيمان**:۔ (پې+ما+ن) (ف تر۔صف۔ مذ۔مو۔ ه)هغه کس چې په لوظ کښې ټينګ نۀ پاتې کېږي۔زر وعده ماتوونکے۔

**ــــ کار**:۔(کا+ر) (اس۔صف۔مو۔ ه)هغه کس چې په کار کښې چست او تېز نۀ وي۔ناراسته۔

زيان د دين چار وابليس سست کاندي له کارو

شپـــــون چې تهاون که، شرمخ له مے بزے (حافظ)

**ــــ مهر**:۔ (م/م+ه+ر)(ف تر۔صف۔ مذ۔مو۔ ه)چې مهر او محبت پکښې نۀ وي۔نامهربانه۔

**ــــ والے**:۔(وا+لے)(اس۔ مذ۔ ج۔والي) ســـستي۔کـاهلي۔ناراســـتي۔ نامرِدتيا

**سستول**: ۔ (س+س+ت+و+ل)(مـص)(۱) کلـک ولـے لـرِې کـول، نرمـه ول د ليندے د ژۀ وغېره راښکون کمه ول (۲) پابندي کمول۔(۳) ناراسته کول ۔بېکاره کول

**سستونګ**: ۔(س+س+تو+ن+ګ)(ق۔حمص)(وــــ سستونه)

**سستونه**: ۔ (س+س+ت+ؤ+ن)(حمص)نرمه ونه۔راښکون کمه ونه۔ناراستيا۔

**سســتوونکے**: ۔ (س+س+ت+وو+ن+کے)(اس۔فـا۔ مـذ۔ ج۔کي)نرمـوونکے۔ ټينګوالے يا راښکون کموونکے۔

**سسته**: ۔ (س+س+ت)(پ۔صف۔مو۔ج۔تې)(۱) د کلک يا ټينګ يا راښکلے صنتد۔نرم۔ (۲) په کار کښې نرمه۔يعني چې زر زر کانۀ شي کولے۔(يا نۀ کوي) ناراسته په کار کښې لټه۔(۳) (عوام) بد چلنده۔زر بدکارۍ ته اماده کېدونکے۔

**ــــ پسته**:۔(پ+س+ت)(پ۔صف۔مو۔ج۔سستې پستې)دست پست۔مونث۔ پسته تابع مهمل دے۔ډېره زياته سسته۔بالکل سسته۔چې چستي پکښې ښېخي نۀ وي۔ډېره ناراسته۔

**ــــ لينده**:۔ لي+ن+د)(اس۔مو۔ج۔سستې ليندې) هغه لينده چې راښکلے نۀ وي۔يعني غشے نۀ شي ويشتے۔

څــۀ خلــق په دا مرِاو کتو غوځ مرِه

ګرځوي په سسته لينده په ځټ مغروره (حميد)

**سستي**: ۔ (س+س+تي)(اس۔مو) (۱) نرمي راښکلو کښې کمے۔ناراستيا۔ په کار کښې کمے۔کاهلي ناراستيا۔تساهل۔(۲) د چستۍ صند۔لټ توب۔

**ــــ کول**:۔(۱) د سستۍ نه کار اخستل۔کاهلي کول۔په کار کښې چستي نۀ کول چټک کار نۀ کول۔ناراستيا کول۔ (۲) د څۀ کار په کولو کښې وخت تېرول

**سستېدل**: ۔ (س+س+تې+د+ل)(مص)(۱) نرم کېدل۔چستي نۀ پاتې کېدل۔ کاهل کېدل۔(۲) د کار په رفتا کښې کمے راتلل۔ناراسته کېدل۔(۳) د تارونو وغېره په راښکون کښې کمے راتلل۔جوال خورِل۔

**سستېدنګ** :- (س+س+تې+د+ن+ګ)(ق ـ حمص)(وــــ سستېدنه)

**سستېدنه** :-(س+س+تې+د+ن)(حمص)(۱) نرم کېدنه ـ کاهل کېدنه ـ نا راستیا ـ (۲) د کار په رفتار کښې کمے راتلل ـ (۳) د تارونو وغېره په راښکون کښې کمے راتلل ـ

**سستېدونکے** :- (س+س+تې+دو+ن+کے)(اس ـ فا ـ ج ـ کي)(۱) نرمېدونکے ـ په ټینګوالي یا راښکون کښې کمېدونکے ـ جولې (یا جولنګړه) کېدونکے ـ (۲) ناراسته کېدونکے ـ کاهل کېدونکے ـ

**سستېدۀ** :- (س+س+تې+د)(حمص)(وــــ سستېدنه)

**سسټر** :- (س+س+ټ+ر)(انګ اس ـ مو ـ ج ـ ي)(۱) خـــور ـ (۲) نرســـه ـ (د هسپتال نرسې ته احتراماً سسټر یا خور وئیلے شي) ـ

**سسټم** :- (س+س+ټ+م)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)نظام ـ طریقه ـقاعده ـ ائین قانون ـ تدبیر ـ منصوبه ـ

**سسټمېټک** :- (س+س+ټ+مې+ټ+ک)(انګ ـ صف)د نظام مطابق ـ د "طریقې" قاعدې مطابق ـ

**سسکوره** :- (س+س+کو+ر) (اس ـ مــو ـ ج ـ رې)(۱) ګینتــري ـ کــدالې ـ د زمکې د کنستلو هغه اله چې دوه سرونه لري ـ (۲) هغه کاڼیزه زمکه

**سسکه سسکه** :- (س/سُ+س+ک+س/سُ+س+ک)(س صورت)د ژړا اواز چې د مرې نه ښتے ښتے اووځي ـ خصوصاً د ماشومانو ښُسکه ښُسکه ـ

**ـــ کول**:-(پ تر ـ مص)ښُسکه ښُسکه کول ـ په مرې کښې ماته ماته ژړا کول

**سسن** :- (س+س+ن) (وــــ څڅن)

**سسواکے** :- (س+س+وا+کے) (وــــ څڅواکے)

**سسوب** :- (س+سو+ب)(وــــ څڅوب)

**سسوبے** :- (س+سو+بے)(وــــ څڅوبے)

**سسول** :- (س+س+و+ل)(وــــ څڅول)

**سسون** :-(س+سو+ن)(وــــ څڅون)

**سسې** :- (س+س+ې)(وــــ څڅې)

**سسي** :- (س+سي)یو بوټے چې اغزي نۀ لري ـ او د سوځولو په کار راځي ـ

ستا د مخ په لمبه سوځم لولپه شوم

د آتش لمبـــــه هېڅ پرېږدل د سسي (خوشحال)

**سېدل** :- (س+سې+د+ل)(وــــ څڅېدل)

**سشکله** :- (س+ش+ک+ل)(ص)هیچرے ـ هغه وخت ـ

**سشن** :- (س+ش+ن) (انګ ـ اس ـ مذ) (وــــ سېشن)

**سشن، جج** :-(ج+ج)(انګ ـ اس)(وــــ سېشن جج)

**ـــ کورټ**:-(کو+ر+ټ)(انګ ـ اس)(وــــ سېشن کورټ)

**سښسورے** :-(س +خ /ش+ سو+ رے ) (رق ـ اس ـ مــو) کــدال ـ کلنــګ ـ تسکوره ـ

**سښکوره** :- (س+خ/ش+کو+ر)(ق ـ اس ـ مؤ ـ ج ـ سینکورے)(وــــ سسکوره)

**سطبر** :- (س+ط+ب+ر)(ع ـ صف)غټ ـ

**سطح** :- (س+ط+ح) (ع ـ مو ـ ج ـ ې) (۱) هغــه چې اوږدوالے او پلـن والے لري خو غټ والے نۀ لري ـ (۲) د کاغذ ، د اوبو ، د زمکې برنے مخ ـ (عربي جمع ئې سطوح ده)

**سطح اب** :-(س+ط+ح+ا+ب)(عف تر ـ مذ)د اوبو سطح ـ د اوبو مخ ـ

**سطح زمین** :- (س+ط+ح+ز+مي+ن)(عف ـ مذ)د زمکې سطح دزمکې مخ ـ

**سطحِ مرتفع** :- (س+ط+ح+مُ+ر+ت+ف+ع)(ع تر ـ اس ـ مو) لوړه سطح ـ هغـه زمکه یا لوې مېدان چې د نورې علاقې نه اوچت وي ـ

**سطحي** :- (س+ط+حي)(ف ـ صف)(۱) د سطحې سره تعلق لرونکے ـ برنے مخ سره تړلے ـ (۲) سرسري چې ژور (جور) نۀ وي ـ

**سطر** :- (س+ط+ر) (ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) کرښــه ـ لیکــه ـ (د عربــې جمع ئې سطور ده)(۲) قطار ـ صف ـ (۴) لار ـ

**سطرِ لاب** :-(س+ط+ر+لا+ب)(ع ـ اس ـ مذ)د اسطراب مخفف ـ هغـه اله چې د ستورو اوچت والے وغېره ـ پرې معلومولے شي ـ

**سطل** :- (س+ط+ل)(ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د تـانبې یـا د زېـړو وغېـره لـوې تـال ستل ـ طشت ـ تالے ـ

**سـطوت** :- (س+ط+و+ت)(اس ـ مـذ)(۱) دبدبـه ـ رعـب داب(۲) قهـر ـ سـختې ـ غضب

**سطور** :- (س+طو+ر)(ع ـ اس ـ مذ)د سطر جمع ـ (وــــ سطر)

**سطیح** :- (س+طي+ح)(اس ـ مع ـ مذ) د عربـو د هغـه کاهن نوم ـ چا چې د حضرت محمد مصطفٰی ﷺ د بعثت په حقله پېش ګوئي کړې وه ـ

**سع** :- (س+ع)(اس صوت)(۱) د څۀ ځیز په تېزۍ سره په خوا کښې د تېرېدو اواز ـ شغ ـ (۲) د ټوپک د چلېدو اواز ـ

**سعاد** :- (س+عا+د) (ع ـ اس مع ـ مو) د عربو یوه ښځه چې بې کچه ډېره ښائسته وه ـ

**سعادت** :- (س+عا+د+ت)(ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)نېک بختې ـ ښۀ مرغـه تـوب ـ بختوري ـ

**ـــ روزي کېدل**:-نېک بختي په برخه کېدل ـ

**ـــ کېش**:- (کے+ش)(عف تر ـ ص ـ مذ ـ مو ـ کېشه) (وــــ سعادت مند)

**ـــ مند**:-(م+ن+د)

**ـــ من**:-(م+ن)(عف تر ـ پ تر ـ صف) (۱) سعادت والـه ـ نېـک بختـه ـ بختـور(۲) نېک ـ ښۀ ـ (۳) فرمانبرداره ـ حکم منونکے ـ (د ورو په حقله)

**ـــ مندي**:-(م+ن+دي)(عف ـ اس ـ مو)(۱) نېک بختي ـ بختوري (۲) ښۀ والے ـ

**سعادت خېل** :- (س+عا+د+ت+خېل)(اس مع)د بازید خېلو یوه څانګه ده ـ چې (جواکي ـ ادم خېل افریدي دي ـ

**سُعال** :- (س+عا+ل)(ع ـ اس ـ مذ)ټوخې ـ د ټوخي مرض ـ

**سعت** :- (س+ع+ت)(پ ـ اس)(وــــ ساعت)

**سعد** :- (س+ع+د)(ع ـ صف) نېـک بخـت ـ ښۀ بخت والا ـ مبـارک د سپېرۀ پـه مقابله کښې ـ

**ـــ اصغر**:-(ا+ص+غ+ر)(ع ـ تر ـ مذ)وړوکے بختور ستورے ـ زهره ناهید ـ

**ـــ اکبر**:- (ا+ک+ب+ر)(ع تر ـ اس مذ) لوې بختور ستورے ـ مشتري ـ

**سـعد** :- (س+ع+د)(ع ـ اس ـ مـع)(۱) د عربـو نارینـه یـو عـام نـوم ـ (۲) د عربـو د هغې قبیلې نوم (بنو سعد) چې د حضور ﷺ دائ بیبي حضرت حلیمه ﷺ تعلق ورسره لرۀ ـ (۳) د عربو عاشقانه تصویو هیرو چې په اسماء باندې مئین ؤ ـ

**سعدي** :- (س+ع+دي)(ع ـ مع)د فارسې ژبې عظیم شاعر او نثر نګار ـ ګلستان او بوستان د هغۀ شاهکارونه دي ـ د دنیا پـه اکثرو ژنو کښې ئې ترجمې شوې دي ـ په کال ۴۹۱ ء ه کښې وفات شۀ او خپـل ښار شیراز کښې ښـخ کړے شو

**سعدین** :- (س+ع+دے+ن)(ع ـ اس مع)دوه بختور ستوري ـ یعني زهره او مشتري ـ

**سعوط** :- (س+عو+ط)(ع ـ اس ـ مذ) په پوزه کښې دوائي اچونه ـ

**سعول** :- (س+ع+و+ل)(مص) کاڼے یا بل څۀ ځیز په تېزۍ سره غورځول ـ شغول ـ (عموماً ور "با"ر" "را" سره راځي) ـ

**سعي**:- (س+عي)(ع ـ اس ـ مو)(۱) منډه وهل ـ (۲) کوښښ ـ (۳) د حج په موقع د مکې معظمې د دوو خاصو غونډو مروه او صفا تر مېنځه اوو ځله منډه

ـــ **کول**:- (عف تر ـ حمص)(۱) کوښښ کول ـ جدوجهد کول ـ منډې رامنډې وهل ـ (۲) منډه وهل ـ زغل کول ـ (۳) د حج په موقع د صفا مروه (دوه غونډۍ) تر مېنځه د قاعدې مطابق منډې وهل ـ

ـــ **لاحاصل**:-(لا+حا+ص+ل)(عربي جمله) هغه کوښښ چې فائده او حاصل ئې هيڅ نۀ وي ـ خوشې جان کړول ـ

ـــ **نامشکور**:-(نا+م+ش+کو+ر)(و ــــ سعي لاحاصل)

**سعيد** :- (س+عي+د)(ع ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه)(۱) مبارکه نېک بخته (۲) د مسلمانانو نارينؤ په نومونو کښې استعمالېږي ـ

**سعير** :- (س+عي+ر)(ع ـ اس ـ مذ)بل شوے اور ـ د اور لمبې ـ دوزخ ـ

**سغ** :- (س+غ)(اس ـ صو ـ مذ) شغ ـ د کاڼي ويشتلو يا د ټوپک د ګولۍ اواز ـ

**سغا** :- (س+غا)(اس صو ـ مؤ) د ټوپک د ګولۍ د رفتار په وخت اواز ـ

**سغاؤ** :- (س+غا+ؤ)(اس ـ مذ) د ګډو بزو يو مرض چې پوزه ئې پکښې بنده شي ـ

**سغدي** :- (س+غ+دي)(اس مع) د ايراني ژبو څانګه چې په سغيديانه کښې وئيلے شي ـ پښتو سره ډېر نژدې والے لري ـ

**سغکے** :- (س+غ+کے)(اس ـ مذ)(و ــــ سغهار)

**سغل** :- (س+غ+ل)(ق ـ اس ـ مذ)د بدهضمۍ مرض ـ

ـــ **کېدل**:- بدهضمي کېدل ـ خېټه خرابېدل ـ

**سغندی** :- (س+غ+ن+د+ی) (اس ـ مؤ)سپکه او بې خونده خبره ـ

**سغوبے** :-(س+غو+بے)(اس ـ مذ ـ ج ـ بي)لخلخه ـ د دماغ د پاره خوشبويه اوبۀ ـ

**سغول** :- (س+غ+و+ل)(مص)د څۀ څيز په تيزۍ سره غورځول ـ

**سغولے** :- (س+غ+و+لے)(مف ـ مذ ـ ج ـ سغولي)څۀ څيز په زور سره غورځولے شغولے ـ

**سغونګ** :-(س+غ+و+ن+ګ) (ق ـ حمص)(و ــــ سغونه)

**سغونه** :- (س+غ+و+ن)(حمص)د څۀ څيز په تېزۍ سره غورځونه شغونه ـ

**سغوونکے** :- (س+غ+و+ن+کے)(فاع ـ مذ ـ ج ـ سغوونکي ـ مؤ ـ سغونکے) څۀ څيز په تيزۍ سره غورځوونکے ـ شغوونکے ـ

**سغهار** :- (س+غ+ها+ر)(اس ـ صو ـ مذ)د کاڼي يا د ټوپک د ګولۍ په تېزۍ سره د رفتار اواز ـ

**سغېد** :- (س+غې+د+ل)(مص)د څۀ څيز په تېزۍ او زور سره ويشتلے کېدل ـ يا غورځولے کېدل ـ شغېدل ـ عموماً ور ـ در ـ وا ـ سره راځي)

**سغېدلے** :- (س+غې+د+لے) (مف ـ مذ ـ ج ـ سغېدلي ـ مؤ ـ سغېدلې) څۀ څيز په تېزۍ او زور سره ويشتلے شوے يا غورځېدلے ـ

**سفّاح** :- (س+ف+فا+ح)(ع ـ اس ـ مذ) (۱) وينه بهوونکے ـ وينه تويه وونکے (۲) سخي ـ فياض ـ (۳) فصيح ښۀ تقرير کوونکے ـ

**سفارت** :- (س+فا+ر+ت)(ع ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) د صلحې او دوستۍ پېغام وړنه ـ (۲) هغه ټولے يا جرګه چې د يو حکومت د طرفه بل حکومت ته د صلحې ، روغې ، جوړې يا د ښې پېږزونې او دوستانه ښۀ تعلقات قائيمولو يا قائم ساتلو د پاره لېږلے شي ـ

ـــ **خانه**:-(خا+ن)(عف تر ـ مو ـ ج ـ نې) هغه ځاے يا عمارت چېرته چې د يو ملک د سفارت غړے اوسي يا کار کوي ـ

**سفارش** :-(س+فا+ر+ش)(ف ـ مذ ـ ج ـ ونه)د چا په ملګرتيا کښې بل سړي له تلل او هغۀ ته د دۀ د څۀ کار کولو د پاره د وينا سپارښت (عوام ـ شفارس)

ـــ **کول**:-(فپ تر ـ مص)(۱) چاسره بل سړي له تلل او هغۀ ته د دۀ د څۀ کار کولو د پاره وئيل ـ (۲) د چا د ترقۍ وغېره په حقله چاته وېنا کول ـ يا ليکل ـ

**سفارشي** :- (س/سَ+فا+ر+شي)(فپ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان)(۱) سفارش کوونکے ـ (۲) سفارش سره تعلق لرونکے ـ

ـــ **چيټۍ**:- (چي+ټ+ۍ)(و ــــ سفارشي خط)

ـــ **خط**:-(خ+ط) (فپ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه خط چې پکښې د چا د څۀ کار په حقله سفارش شوے وي ـ يعني د هغۀ د کار د کولو د پاره ليکلے شوے وي ـ

**سفاکي** :- (س+ف+فا+کي)(عف ـ تر ـ اس ـ مو)(۱) ظلم ـ زور زياتې ـ بې رحمي ـ (۲) قتل وينه تويه وُل ـ

ـــ **کول**:-(فپ تر ـ مص)(۱) ظلم کول ـ ډېره بې رحمي کول ـ (۲) قتل کول ـ وينې تويه ول ـ

**سفال** :- (سفا+ل) (ع ـ صف)کمينه توب ـ رذالت ـ

**سفال** :- (س+فا+ل)(ع ـ اس ـ مذ)(۱) خاورين لوښے ـ(۲) ټيکرے ـ مات شوے منګے يا کنډول ـ (۳) د بادام يو د غوزاکوړ) پوستکے ـ (۴) د څۀ څيز ښکتنۍ حصه ـ

زړۀ چې خوړ د ښکلي مخ د مينې نۀ وي
پکښې مـات شه د تبرۀ توبرے سفال (خوشحال)

ـــ **ګر**:-(ګ+ر)(عف تر ـ اسم) د خاورو د لوښي جوړوونکے کلال ـ

**سفالي** :- (س+فا+لي)

**سفالين** :-(س+فا+لي+ن)(ف ـ صف)د خاورو ـ خاورين د خاورو () نه جوړ شوے

**سفالينه**:- (س+فا+لي+ن) (ف ـ اس ـ مو)د خاورو لوښے ـ خاورين لوښے

**سفاهت** :- (س+فا+ه+ت)(ع ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) کم عقلتوب ـ رذالت ـ سپکتيا ـ

**سفته** :- (س+ف+ت)(ف ـ صف)(۱) هغه ملغلرې وغېره چې سور کړے شوې وي ـ (د فارسي مصدر سُفتن سورے کول)(۲) پئيلے شوے ، چې تار پکښې تېر کړے شوے وي ـ سورے کړے شوے ـ (۳) پېرلے شوے ـ (۴) (عامي) وطي کړے شوے هغه جينۍ چې کور والے ورسره شوے ـ وي ـ (۵) (ف) سوغات تحفه ـ

ـــ **کېدل**:- پېرلے کېدل ـ پئيلے کېدل ـ

ـــ **ګوش**:- (ګو+ش)(ف تر ـ صف) (۱) هغه کس (هلک يا جينۍ) چې غوږ ئې (د والۍ وغېره کالي د پاره) سورے کړے شوے وي ـ (۲) غلام ـ وينځه ـ (پخوا به د غلامانو او وينځو غوږونه سورے کولے شول او والۍ به وراغوستے شوے ـ د والۍ د هغوې د غلامۍ يا وينځتوب نخښه سه) ـ (۳) مجازاً ـ فرمانبرداره ـ حکم منونکے ـ

**سفر** :- (س+ف+ر)(ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) د خپل ځاے کلي وغېره نه بل چېرته تلل ـ (۲) کوچ ـ روانېدنه ـ

ـــ **خرڅ**:- (خ+ر+ث) س)(فپ تر ـ اس ـ مذ) (۱) د لارې خرڅ ـ (۲) هغه رقم چې چاسره سرکاري ملازم له د يو ځاے نه بل ځاے ته د تللو د پاره د کرائې خوراک څښکاک وغېره د پاره ورکولے شي ـ

ـــ **د اخرت**:-(د+ا+خ+ر+ت) (مرکب)مجازاً ـ مرګ ـ مرکېدنه ـ

ـــ **کول**:- (۱) د يو ځاے نه بل لرې ځاے ته تلل ـ مسافر کېدل ـ (۲) (ددنيا نه) مرکېدل ـ

ـــ **نامه**:-(نا+م)(ف تر ـ مو ـ ج ـ ې)هغه کتاب چې پکښې د چا د سفر حال ليکلے وي ـ

ـــ **په وتل**:- په سفر روانېدل ـ په سفر د کوره وتل يا روانېدل ـ

زۀ دعـــا کـوم په باب د هغې تللیو
چې ازاد مه شي په بخت سفر د تللیو (حافظ)

**سفر** :- (س+ف+ر)(ع ـ اس ـ مذ)(۱) نامه ـ کتاب ـ (۲) د تورات مختلفو برخو ته سفر وئیلے شي ـ

**سفراء** :- (س+ف+را)(ع ـ اس ـ مذ)د سفیر جمع ـ (و ـــ سفیر)

**سفرجل** :- (س+ف+ر+ج+ل) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(بهي بیین) مشهوره مېوه ده ـ

د طـــــربۍ د وني لاندې آسائش کا
رزق سېب انگور انار سفرجل ناک شي (حافظ)

**سفر خېل** :- (س+ف+ر+خېل) (اس مع)د غـلام خېلـو يـوه وړوکې څانگـه ده ـ (هیبت خېل ، جواکي ، ادم خېل) افریدي دي ـ

**سفرمېنا** :- (س+ف+ر+مې+نا)(اس ـ مو)په فوج کښې هغه شعبه یا پلټنه چې د لارو د جوړولو او سرنگونو د کنستلو د پلونو جوړولو وغېره کار کوي ـ (اصلاً دا د انگریزي سیپرز اینډ مائنرز وران شوے شکل دے)

**سفره** :- (س+ف+ر)(ع ـ اس ـ مذ)سوپره ـ کنه ـ

**سفري** :- (س+ف+ري)(ف پ ـ تر ـ صف)(۱) سفر سره متعلق ـ په سفر کښې پکارېدونکے ـ (لکه جامې یا نور سامان)(۲) مسافر ـ سفر کوونکے ـ

**سفسط** :- (ق) (س+ف+س+ط)(ع ـ اس)په بنـکاره او افکـارو کښـې باطـل استدلال (د عربۍ د سفسطه نه لږ بدل شکل دے)

**سفکس** :- (س+ف+ک+س) (انګ ـ اس ـ ج ـ ونه) لاحقه ـ هغه توري چې د نورو الفاظانو نه وروستو لگولے شي ـ

**سفل** :- (س/س+ف+ل)(ع ـ اس)ښکته والے ـ پستي ـ

**ـــ گانه** :- (س+ف+ل+گا+ن)(عف ـ تر ـ صف)د سفلهؤ په شان ـ د کمینهؤ او رذیلو کسانو په شان ـ

**ـــ سفلگي** :- (س+ف+ل+گي)(ف تر ـ اس ـ مو) کمینه توب ـ رذالت ـ

**ـــ سفله** :- (س+ف+ل) (ع ـ صف) (اصل ئې سفله دے چې د سافل جمع ده) کمینه د رذیل نالائق ـ سپک سپاندے ـ کم ظرف ـ

علـم د خدا ے واخلـــي له دغه سفله ناپاکه
تو ے دې په کېف کښې قیمت مشک د چمن نۀ شي (حافظ)

**ـــ پرور** :- (پ+ر+و+ر)(ف تر ـ صف مذ ـ مو ـ ه)د کمینؤ او رذیلانو پالنه او روزنه کوونکے ـ (په شاعرۍ کښې عموماً د اسمان په حقله وئیلے شي)

**ـــ پروري** :- (پ+ر+و+ري)(ف تر ـ اس ـ مو)د کمینهؤ او رذیلانو پالنه روزنه

**ـــ خو** :- (خُو)

**ـــ طبع** :- (ط+ب+ع)

**ـــ مذاج** :- (م+زا+ج) (ف تر ـ صف)د ټولـو يـو شـان معنٰی دي يعنـي هغـه سړے چې عادتونه او خصلتونه ئې د رذیلانو او کمینۀ په شان وي ـ

**ـــ نواز** :- (ن+وا+ز) (و ـــ سفله پرور)

**ـــ سفلي** :-(س+ف+لي)(ف ـ ص) (۱) د لاندې درجې ـ د کوز او پرېوتي سره متعلق ـ (۲) عموماً جادو سره استعمالېږي ـ يعنې هغه جادو چې پکښې د خدا ے پاک په ځا ے د ادنٰی قسم شېطانانو ، دېوانو ـ او بدو ارواحونو نه مدد غوستے شي ـ (۳) دنیوي ـ دے دنیا سره تعلق لرونکے (د اخرت په مقابله کښې)

**سفن** :- (س+ف+ن) (ع ـ اس ـ مذ)(۱) د لرگي د تراشلو اله ـ ترنبځ ـ (۲) هر هغه څیز چې بل څیز پرې تراشلے شي ـ (۳) د مگرمچ د څرمنې ـ چې ډېره کلکه او ستغه وي ـ د توري موټي اچول ـ

**سفوف** :- (س+فُو+ف)(ع ـ اس جم) ډېره مېده شوې دارو وغېره پوډر ـ

**سفه** :- (س+ف)(ع ـ اس ـ مو) حماقت ـ کم عقلتیا ـ کم عقلتوب ـ

**سفها** :- (سُ+ف+ها)(ع ـ اس)د سفیه جمع ده ـ کم عقل ـ احمقان ـ کمینه رذاله خلق ـ

**سفېد** :- (س+فې+د)(ف ـ صف) سپین ـ سپید ـ

**ـــ کاري** :- (کا+ري)(ف تر ـ اس ـ مو)(۱) د سپینولو کار ـ سفېدي کول ـ (۲) ښۀ او نېک کارونه کول ـ دسیه کاري په مقابله کښې)

**ـــ واسود** :- (ا+س+و+د) (ف تر ـ اس مذ) سپین او تور ـ مجازاً ټول هر څۀ ـ

**سفېدي** :-(س+فې+دي) (ص ـ مو)سپینوالے ـ چونه ـ

**ـــ کول** :د کور دېوالونه وغېره له چونه ورکول ـ په چونه یا رنگ سپینول ـ

**سفیر** :- س+فې+ر) (اس ـ مذ ـ ج ـ ان ـ مو ـ ه) د سـفارت کـار کـوونکے ـ استازے (استاځے) پېغام وړونکے ـ د صلحې روغې ـ جوړې ـ د ښې پېرزونې دوستۍ وغېره پېغام وړونکے ـ یا په دې غرض په بل ملک کښې اوسېدونکے چې په دغه ملک کښې د خپل ملک د اوسېدونکو خلقو د مسائلو خیال هم ساتي ـ

**سفینه** :- (س+فې+ن)(ع ـ مو ـ ج ـ ې)(۱) کشتۍ ـ بېړۍ ـ

په عظیم دریاب ئې گډ کړمه ډوبېږم
زۀ ناست گـورم د عشق پـه سفینه یم (خواجه محمد )

(۲) جهاز د (اوبو) ـ(۳) د شاعر د شعرنو بیاض ـ

**سقاء** :- (س+قا)(ع ـ اس ـ مذ) ماشـکي ـ اوبـۀ ډکـوونکے ـ سـقه اوبـۀ راوړونکے

**سقاوه** :- (س+قا+و) (ع ـ اس ـ مو ـ ج ـ وې)(۱) (اصلاً هغه وړوکے شان حوض یا تالاؤ چې پکښې اوبۀ ذخیره کولے شي ـ (۲) د لامبلو هغه ځا ے چې پکښې غسل خانې جوړے شوې وي ـ او د ابو په ټانکۍ کښې اوبۀ گرمه ولے شي ـ

**سقایت** :- (س+قا+ي+ت)(ع ـ اس ـ مو)(۱) اوبۀ ورکول ـ د اوبو د څښلولو کار ـ ساقي گري ـ د اوبو ورکولو خدمت یا ذمه داري ـ
(۲) اوبۀ ول (د پټي وغېره) ـ

**سقایه** :- (س+قا+ي) (ع ـ اس ـ مو)(۱) د اوبو څښـکلو لوښے ـ (۲) د اوبو کښېښودلو لوښے یا ځا ے ـ (۳) په جوماتونو (جماعتونو) کښې د ابو کښېښودو ځا ے چې په غلط طور سره "سقاوه" بللے شي ـ

**سقر** :- (س+ق+ر)(ع ـ اس ـ مذ)(۱) دوزخ ـ جهنم (۲) د نمر تاؤ ـ د نمر تاؤ سوځېدل

د کـفارو خلود گوره
په عذاب کښې د سقر (حافظ)

**سقراط** :- (س+ق+را+ط)(اس مع)د یونان یو مشهور فلاسفر په ۴۴۹ ق م کښې په ایتهنز کښې پېدا شوے ؤ ـ د دۀ عقېدې د یونانیانو د غلطو عقیدو خلاف وې ځکه دۀ ته د زهرو د جام د څښکلو سزا ورکړې شوې وه ـ دۀ د زهرو جام په خوښه وڅښکه خو د خپلې عقېدې نه واو نۀ ړېد دا واقعه د ۳۹۹ ق م وه ـ

**سقط** :- (س+ق+ط)(ع ـ اس ـ مذ)(۱) ردي څیز ـ زبون مال اسباب ـ (۲) په حساب وغېره کښې غلطي ـ (۳) خطا ـ سهو ـ (۴) بد رد وئیل ـ

**ـــ فروش** :- (ـــ فروش)(عف ـ تر ـ اس ـ مذ)(۱) هغه سړے چې په زمکه پرېوتے مال ټول کړي ـ او بیا ئې ارزان خرڅ کړي ـ (۲) پساري ـ د تېل مالگې دکاندار خراب بندش اشعار وائي ـ

**ـــ ویل** :بد رد وئیل ـ سپورې ستغې وئیل ـ

**سقط** :- (س+ق+ط) (ع ـ اس ـ مذ)(۱) هغه ماشوم چې کچه د مور د گېډې نه پرېوځي ـ (۲) (ع) هغه بڅرے چې چقمق د کاڼي نه ووځي ـ

**سقط ـــــ کېدل**:- د ښځې حمل غورځېدل ـ د کچه بچي د مور د ګېډې نه غورځېدل ـ

**سقف** :- (س+ق+ف) (ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د کوټې چت ـ

**سقف لاجورد** :- س+ق+ف+لا+ج+و+ر+د) (عف تر ـ اس ـ مذ) شین (نیلي) چت ـ مراد ترې شین اسمان دے ـ (لاجورد ـ دنیلي رنګ یو قیمتي کاڼے دے)

**سقفِ مینا** :- (مي+نا)(عف تر ـ اس ـ مذ) نیلي چت ـ مراد ترې اسمان دے ـ

**سقم**:- (س+ق+م)(ع ـ اس ـ مذ)(۱) بیماري ـ ناروغتیا ـ (۲) نقص ـ عیب

**سقمونیا** :- (س/سُ+ق+مو+نې+یا) (ع ـ اس ـ مو)یو قسم دوائي ده ـ چې عموماً د صفرا د پاره استعمالېږي ـ شین زېړ بخن ګونه شان دے ـ

پـه سقمونیا د توبې طرح کړه سقم نفساني
شکم به پاک له خبثه نه کړې بې له دې جلابه (حافظ)

**ـــــ ورکول**:ـ د سقمونیا په دوائي علاج کول ـ

رنځوران واړه خوارۀ دارو ګنینه
چې طبیب ئې ورکوي سقمونیا ده (خواجه محمد بنګش)

**سقنقور** :-(س+ق+ن+قو+ر) (ع ـ اس ـ مذ)ځمځرې ـ په شان یو ځناور چې په شګلوړه کښې وي ـ عموماً وچ کړې شکل کښې دوائي په شکل کښې (د قوت باد د پاره استعمالېږي) ـ

**سقوط** :- (س+قو+ط)(ع ـ اس ـ مذ)(۱) ساقط کېدنه ـ پرې وتل ـ (۲) د کچه بچي د مور د ګېډې نه پرېوتل ـ د حمل اسقاط کېدل ـ (۳) خطا کېدل ـ غلطي کول ـ (۴) د یو ښار یا د تلا ماتې خوړل ـ

**سقي خېل**:- (س+قي+خېل)(اس مع)د ماموزو یوه څانګه ده ـ چې مشتې (د اووک زوهمسایه) دي ـ

**سقیفه** :- (س+قي+ف)(ع ـ اس ـ مو)څپر ـ دالان ـ چت کړے کولاؤ ځاے ـ

**ـــــ بنو ساعده**:ـ (ب+نو+سا+ع+د)په مدینه منّوره کښې د بنو ساعدے د قبیلې هغه څپر یا دالان ـ چې د حضور ﷺ د وفات نه پس انصار هلته جمع شوي وو ـ چې د مسلمانانو د مشر انتخاب وکړي ـ د وروستو هم هلته د ابوبکر صدیق ﷺ انتخاب وشو ـ (حضرت علي ﷺ او حضرت عباس ﷺ دا فېصله نۀ وه منلې)

**سقیم** :- (س+قي+م)(مع ـ اس ـ ص)(۱) بیمار ـ ناروغه (۲) عیب جن ـ نقص واله

**سک** :- (س+ک)(اس ـ مذ)(۱) یو بیماري د بدن څۀ حصه عموماً ملا شله شي ـ او یو خوا بل خوا حرکت نۀ شي کولے ـ په شا کښې برېښ ـ څک ـ (۲) ابغ نبغ شوے ـ رانښکلے شوے ـ (۳) سم دم ـ

**سُک** :- (س+ک)(ه ـ اس ـ مذ)ارام قلار ـ مزه ـ (اصل لفظ سُکھ دے)
متل دے :مرغۍ لړ خوري خو په سُک خوري ـ

**سک** :- (س+ک)(اس ـ مذ ـ ج ـ سکان)(وـــــ سُکے)

**سکاچ** :- (س+کا+چ)(اس ـ مع) د سکاټ لېنډ ملک سره تعلق لرونکے سکاټ لېنډي ـ (عموماً دا لفظ د یو خاص قسم شرابو (وِسکي) سره استعمالېږي ـ دغې ملک سکي ډېر مشهوره ده ـ

**سکار** :- (س+کا+ر)(اس ـ ج ـ مذ)(وـــــ سکارۀ) د ټاټیو سکاره نشته ـ

**سکارف** :- (س+کا+ر+ف)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(لوې رومال ـ لوپټه)

**سکاروے** :- (س+کا+ر+وے) (اس ـ مذ ـ ج ـ وي)د یو بیمارۍ نوم دے چې د سینې دننه پرده پکښې وپړسېږي ـ په عربۍ کښې ورته ذات الجنب یا ذات الصدر وائي ـ

**ـــــ کېدل**:ـ د سینې دننه پرده پړسېدل سکاروي نیول ـ

**ـــــ سکاروي نیول**:-(وـــــ سکاروے کېدل)

**سکارۀ** :- (س+کا+ر) (اس ـ ج)د سکور جمع ده ـ کوئله ـ کوله ـ

**ـــــ خښته**:ـ(خ+خ/ش+ت)(اس ـ مو ـ ج ـ تې) د سکورو د چورې جوړ شوے غونډارے چې په ژمي کښې بلولے شي ـ سکور کاڼے ـ

**ـــــ والا**:ـ(اس صف ـ مذ)څوک چې سکارۀ خرڅوي ـ

**سکاسه** :- (س+کا+س)(اس ـ مو) یو خیالي څیز چې په توره شپه کښې د بني ادم یا ځناور په شان ښکاره شي خو دا پته نۀ لګي چې دا څۀ څیز ؤ ـ

**سکاک** :- (س+کا+ک)(وـــــ څښکاک)

**سکال** :- (س+کا+ل) (اس ـ ظر) د سږ کال یا د سخ کال مخفف ـ روان کال ـ

**سکالر** :- (س+کا+ل+ر)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان) (۱) عالم پوهه ـ ادیب ـ (۲) د اعلی درجې) علم حاصلوونکے طالب علم ـ

**ـــــ شپ**:ـ (ش+پ) (انګ ـ تر ـ اس مذ)(۱) پوهه ـ علمیت ـ (۲) وظیفه چې چا عالم زده کوونکي له د امداد په طور ورکولے شي ـ

**سکالګے** :- (س+کا+ل+ګے)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ګي) د زنانۀ څادګے ـ چې د لوے رومال هومره وي ـ

**سکالو** :-(س+کا+لو)(ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ ګانې)(۱) ګفتګو ـ مذاکره (ق) ـ
(۲) پس پسې ـ رورو ـ پټې پټې خبرې ـ (۳) علامت ـ اثر ـ

**په ـــــ پوهېدل**:ـ په علاماتو په نخښو نښانو پوهېدل ـ

**سکام** :- (س+کا+م)(ق ـ اس ـ مذ)(۱) د تنبو ستن ـ مجازاً د کوټې ستن ـ (۲) دوه لرګي چې د زاوئې په شکل کښې د اسونو په ځاے اودرولے شوے وي ـ

**سکاڼ** :- (س+کا+ن+ړ)(اس ـ مذ ـ مو ـ ه)(۱) کمیت اس ـ تورنجن اس ـ د سور زېړبخن رنګ اس ـ (۲) توربخن رنګ اس ـ

**سکاڼے** :- (س+کا+ن+ړے) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ي) د اوسپنې قلم چې اوسپنه پرې پرېکوي ـ

**سکاو** :- (س+کا+ؤ) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ سکاوان) (وـــــ سقاو)

**سکاوټ** :- (س+کا+ؤ+ټ)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان) د یو مشهور عالمګیر تحریک "بوائے سکاوټ" یو غړے هلک ـ (اصل معنٰی ئې جاسوس ـ تفتیش کوونکے ـ مخبري کوونکے ـ څاروونکے ـ څاروندوي ده) ـ

**ـــــ بوائے**:ـ (بو+وا+ئے) (انګ ـ اس ـ مذ) (۱) یو تحریک چې د اولنې جنګ عظیم نه پس یو انګریز افسر لارډ بېډن پاول دمدرسو هلکانو د پاره شورو کړے ؤ ـ ددې (ظاهري) مقصد د مدرسو په هلکانو کښې مستعدي چستي او پوهه او ذهانت وغېره پېدا کول وو ـ (۲) په دغې تحریک کښې شاملېدونکے هلک ـ

**ـــــ ماسټر**:ـ(ما+س+ټ+ر)(انګ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان)د مدرسې هغه استاذ چې د مدرسې د بوائے سکاوټ تحریک کښې شامل شوو هلکانو د ترتیب وغېره ذمه دار وي ـ

**سکاوټنګ** :- (س+کا+ؤ+ټ+ن+ګ)(انګ ـ مذ)(۱) د بوائے سکاوټ تحریک (۲) د سکاوټانو تربیت او زده کړه ـ

**سکاوه** :- (س+کا+وه)(ق ـ اس ـ مؤ ـ ج ـ سکاوې) سقاوه ـل غسلخانه

**سکائي سکرېپر** :- (س+کا+ئي+س+ک+رے+پ+ر)(انګ تر ـ اس ـ مذ) عموماً د هغو عمارتونو د پاره استعمالېږي چې ډېر زیات لوړ وي ـ اسمان ته رسېدونکے عمارت ـ په عربۍ کښې ورته ناطحتهُ السحاب وائي ـ

**سکپال** :- (س+ک+پا+ل)(ه ـ اس ـ مذ) اصلاً سُکهپال ـ یو قسم ډولۍ ـ

**سکتر** :- س+ک+ت+ر)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان ـ مو ـ ه)(د انګریزی د

سیکرټري وران شکل دے) مرستیال ـ لوی منشي ـ

**سکته** :- (س+ک+ت)(ع ـ اس ـ مو ـ ج ـ ي) (۱) یو مرض دے ـ چې پکښې بنې دم ببخي مرِ ښکاري او د هغهٔ زړهٔ هم حرکت نهٔ کوي ـ البته وجود ئې څهٔ قدرې ګرم وي ـ (۲) د شعر په وزن کښې یو نقص ته هم وائي ـ

**ـــ کېدل**:ـ بېهوشه کیدل هیڅ حرکت نهٔ کول ـ

**سکته** :- (س+ک+ت)(اس ـ مؤ) صبر ـ قناعت ـ

**ـــ کول**:ـ (ق ـ مص) صبر کول د قناعت نه کار اخستل ـ

**ـــ ورکول**:ـقانع کول ـ (ر ـ ق)

**سکته** :- (س+ک+ته)(اس ـ مؤ)ټینګوالے ـ ټینګار ـ

**سکتے** :- (س+ک+تے)(اس ـ مذ ـ ج ـتې)صابر ـ زغم واله ـ پېڅو ـ

**سکتیا** :- (س+ک+ت+یا)(اس ـ مو ـ ج ـ ګانې)صبر تحمل ـ زغم ـ پېڅه ـ

**سکځے** :- (س+ک+ڈ)زے)(ق ـ اس ـ مذ)نجي ـ (د ګنډلو یو قسم) ـ

**ـــ کول**:ـ(ق ـ مص)نجي کول ـ ډېر نرۍ او واړهٔ تارونه ټکونه ګنډل ـ

**ـــ کېدل**:ـ(ق ـ مص)نجي کېدل ـ نجي وهلے کېدل ـ

**سکرات** :- (س+ک+را+ت) (اس ـ ج)(د سکره جمع ده) بېهوشي ـ سختي د ځنکدن تکلیفونه ـ

**سکرپټ** :- (س+ک+ر+پ+ټ)(انګ ـ اس ـ مذ)لاس لیک ـ په لاس لیکلے شوے مضمون مقاله وغېره ـ

**سکرټ** :- (س+ک+ر+ټ)(انګ ـ اس مذ ـ ج ـ ونه)د عربي (او د ترکو وغېره مسلمانانو ښځو د ملا نه لاندې د اغوستو جامه چې د پرتوګ په ځاے اغوستے شي ـ (پېنځې نهٔ لري)

**سکرنډۍ** :- (س+ک+ر+ن+ډ+ئ)(اس ـ مو) (۱) غوټه ـ (۲) د میزري د بوټي جرړه

**وټني** :-(س+ک+رو+ټ+ني)(نګ ـ اس ـ مو)څیر کتنه ـ په څهٔ معامله کښې په غور سره تفتیش کونه ـ کره کتنه ـ

**ـــ کول**:ـڅیر کتنه کول ـ په څهٔ معامله کښې په غور سره تفتیش کول کره کتل

**سکروټه** :- (س+ک+ر+و+ټه)(اس ـ مؤ ـ ج ـ سکروټې)سروټکه ـ سوځېدلے کوله

**سره ـــ پورې نېول**:ـ (اق)په چا باندې د څهٔ کار کولو جلتي کول ـ

**سکره** :- (س+ک+ر) (وـــ سکرنډۍ)

**سکرپېر** :- (س+ک+رے+پ+ر)(انګ ـ اس ـ مذ)دا لفظ په پښتو کښې سکائي (اسمان) سره یو ځاے استعمالېږي ـ وـــ سکائي سکرپېر)

**سکرین** :- (س+ک+ري+ن)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) پرده ـ پناهي ـ (۲) د سنیما پرده چې تصویرونه پرې ښکاره کېږي ـ (۳) د ټیلي وېژن مخامخ شیشه چې تصویرونه پرې ښکاره کېږي ـ

**سکرین** :- (س+ک+ري+ن)(انګ ـ اس ـ جم)یو قسم سپینه بلورینه ماده چې ډېره زیاته خوږه وي ـ د شکرې او چینې په ځاے استعمالولے شي ـ

**سکریو** :- (س+ک+ري+و)(انګ ـ اس ـ مذ) (۱) پېچ رخونو واله مېخ ـ (چې په تاؤولو سره په لرګي کښې ننه وځي)(۲) هغه اله چې رخونو واله مېخ پا بل کوم داسې څیز پرې تاؤ ولے شي ـ پېچ کس ـ پېچ کش ـ

**سکړک** :-(س+ک+ړ+ک)(اس ـ مذ) (۱) چې لاس او پښې ئې پرېکړے شوې وي ـ یا بېکاره وي ـ (۲) معذوره ـ مجبوره ـ

**سکړک** :- (س+ک+ړ+ک)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د جـــــوارو د اوړو ډوډۍ ـ جوارینه سوکړک ـ

**سک سک** :-(س+ک+س+ک) (اس صورت)هغه اواز چې سخوندر ته په غوا د ختو په وخت کولے شي ـ

**سک سکے** :-(س+ک+س+کے)(صف ـ مذ ـ مو ـ سک سکی)بې لوزه ـ بې

وعدې ـ

**سکښت** :- (س+ک+خ/ش+ت)(پ ـ اس ـ مذ) د ټوکي د جامو د پاره قېنچې کونه قطع پرې کنه ـ

**سکښتل** :- س+ک+خ/ش+ت+ل) (مص)د جامو وغېره جوړولو د پاره د ټوکي قېنچي کول ـ قطع کول ـ

**سکښتنګ** :- (س+ک+خ/ش+ت+ن+ګ)(ق ـ حمص)(وـــ سکښتنه)

**سکښتنه** :- (س+ک+خ/ش+ت+ن) (حمص)د ټوکي په قېنچي وغېره قطع کؤنه ـ

**سکښتون** :-(س+ک+خ/ش+تو+ن) (اس ـ مذ)(وـــ سکښتنه)

**سکښتونکے** :- (س+ک+خ/ش+تو+ن+کے)(اس ـ فا ـ ج ـ کي)هغه کس چې د جامو د پاره ټوکے په قېنچي وغېره پرې کوي ـ قطع کوونکے ـ

**سکښتے** :- (س+ک+خ/ش+تے)(اس مف ـ ج ـ تي) کپړه (په قېنچي وغېره) پرې کړے شوے ـ قطع شوے ـ قېنچي شوې ـ

**سکل** :- (س+ک+ل)(مص مت)(وـــ ځښل)

**سکل** :- (س+ک+ل)(وـــ ځښکل یا څکل)

**سکلۍ** :- (س+ک+ل+ۍ) (اس ـ مو) یو قسم پېزار دے چې مسافر خلق ئې اکثر په سفر کښې اغوندي ـ

**سکلے** :- (س+ک+لے)(مف ـ مذ ـ ج ـ سکلي ـ مؤ ـ ښکلې)(وـــ ځښلے)

**سکم** :- (س+ک+م) (اس ـ مو ـ ج ـ ونه)لویه بوجۍ ـ جوال ـ سکوم ـ

**سکن** :- (س+ک+ن) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)نُوسے ـ وړوکے انبور ـ

**سکناوؤ** :-(س+ک+نا+وؤ)(اس ـ مذ ـ ج ـ ګان)کوشېر کوونکے ـ کنده کوونکے ـ سکیند به ـ

**سکنجبین** :-(س+ک+ن+ج+بي+ن)(اس مذ ـ ج ـ ونه)یو قسم شربت چې د سرکې او د ګبین نه جوړیږي ـ ځکه به ئې ورته سرګبین وې عربو ترېنه "سرکنجبین" جوړ کړ ـ چې بیا وروستو استعمال سره سکنجبین شهٔ ـ

**سکنجه** :- (س+ن+ج) (اس ـ مو ـ ج ـ ي)شکنجه ـ هغه اله چې څهٔ څیز پکښې کلک ګېرولے شي ـ لکه د کتابونو شکنجه ـ یا د بني ادمانو شکنجه ـ (چې ورنه تښتې یا د عذاب د پاره)

**ـــ کول**:ـ(مص) (۱) په سکنجه یا شکنجه کښې ګېرول ـ (۲) جمع کول ـ خوندي کول ـ (مال دولت وغېره) ـ (۳) عذاب ورکول ـ

**ـــ کېدل**:ـ (مص) (۱) په سکنجه یا شکنجه کښې راګېرول کورکې کېدل (۲) جمع کېدل ـ

**سکندر** :- (س+ک+ن+د+ر)(اس مع ـ مذ)په دې نامه ډېر بادشاهان تېر شوي دي ـ اکثر د سکندر نه مراد د مقدونیې (یونان) بادشاه ګڼلے شي ـ چې مصر ، ایران ئې فتح کړي وو ـ او تر هنده رارسېدلے ؤ ـ دلته نه بهر ته لاړ ـ او په بابل (عراق) کښې مړ شو ـ او د خپلو فتوحاتو وغېره ؤ په وجه سکندر اعظم بللے شي ـ ځنې پخوانو خلقو سکندر اعظم پورې عجیبه عجیبه قیصې تړلې دي چې درستې نهٔ دي ـ لکه دا چې دے خضر ﷺ سره د آب حیاتو تر چینې رسېدلے ؤ ـ په قرآن پاک کښې "ذوالقرنین" ذکر راغلے دے ـ ځینو پخوانو خلقو دغه یوناني سکندر اعظم ذوالقرنین ګڼلے دے ـ دا هم درسته نهٔ ده ـ

سکنـــدر غـــوښت آب حیـات سائر له ملو سره ؤ
خضر څو کاله شۀ وړومبې کامیاب سلطان نه راغے (حافظ)

**سکندر اعظم** :- (اس مع ـ مذ)مشهور یوناني فاتح ـ چې ډېر ملکونه ئې فتح کړي وو ـ د هند د فتحې د پاره د پښتنو په لاره تېر شوے ؤ ـ جنګ کښې

سکندر اعظم د مداک ښار کښې په پښه ډېر ډېر بد زخمي شوے ، ـ تر څۀ وخته دي خلقو د سکندر لوئي ماته کړه ـ

**سکندر خان خټک** :- (اس مع ـ مذ)د خوشحال خان خټک زوے ـ ښۀ شاعر ؤ ـ دیوان لري ـ

**سکندر خېل** :- (س+ک+ن+د+ر+خېل)(اس مع)د منظر خېلو یوه څانګه ده ـ چې (ابراهیم خېل، اتمانزئ ، درویش خېل) وزیر دي ـ

**سکندر خېل** :- (د دغه)(اس مع)د پلالیو یوه څانګه ده ـ چې (تاپیائي ـ تپي زاد) داوړ دي ـ

**سکندر خېل** :- (ددغه)(ا مع)د بادیوئیو یوه څانګه ده چې (خلي خېل ، برني شمن خېل) محسود دي ـ

**سکندر خېل** :- (ددغه)(اس مع)د عبدل خېلو یوه څانګه ده چې (بوراخېل ، مهمت خېل،اتمان زئ ، درویش خېل) وزیر دي ـ

**سکندر خېل** :- (ددغه)(اس مع)د خونیو یوه څانګه ده چې (شادي خېل ، نصرئ کالو خېل ، احمد زئ ، درویش خېل) وزیر دي ـ

**سکندر خېل** :- (ددغه)(اس مع)د کندئ یوه څانګه ده ـ عیسٰی خېل ، مهمند دي ـ

**سکندر خېل** :- (ددغه)(اس مع)د ماموزو یوه څانګه ده چې اسماعیل زئ ، اورکزئ دي ـ

**سکندر خېل** :- (ددغه)(اس مع)د کوکي خېلو افریدو یا ښاخ چې ددې څونګې بیا دا دي ـ زکو خېل ، عثمان خېل ـ

**سکندر خېل** :- (اس مع)د لخي یوه څانګه ده چې (بېږي ، زخاخېل ، افریدي دي ـ

**سکندر کور** :- (س+ک+ن+د+ر+کور)(اس مع)د کمال خېلو څانګه ده ـ چې (مدوخېل ، اسد خېل ، میتا خان خېل ، کوکي خېل) افریدي دي ـ

**سکندل** :- (س+ک+ن+د+ل)(مص مت)سکنل ـ د حجه کول ـ مات هړوکے ترل ـ

**سکنده** :- (س+ک+ن+د)(وـــ سېنډه)

**سکنده** :- (س+ک+ن+د)(رق ـ اس مو ـ ج ـ دے)پېوند ـ کونده ـ (د یوې ونې څانګه په بله ونه کښې لګونه)

**ـــ کول**:- (وـــ سکندل)

**سکڼ** :- (س+ک+ن+ړ)(اس ـ مذ)(۱) سکاڼ ـ (۲) پرېکړه ـ

**سکڼل** :- (س+ک+ن+ړ+ل) (مص)د جامو وغېره د پاره ټوکے په قېنچۍ پرې کول ـ سکښتل ـ قطع کول ـ

**سکڼلے** :- (س+ک+ن+ړ+لے)(اس فا ج ـ لي)د جامو وغېره د پاره په قېنچۍ پرېکړے شوے ـ قطع شوے ـ

**سکڼودل** :- (س+ک+ړو+د+ل)(مص)(وـــ سکڼل)

**سکڼونکے** :- (س+ک+ن+ړو+ن+کے)(اس فا ـ ج ـ کي)هغه کس چې ټوکے وغېره جامو د پاره قېنچي کوي ـ قطع کوونکے ـ سکښتونکے ـ کپړه قېنچي کوونکے ـ

**سکڼه** :- (س+ک+ن+ړ)(اس ـ مو ـ ج ـ ړې)د سکڼ تانیث ـ سکانه ـ توربخن رنګ واله ـ (ښځه یا جینۍ وغېره)

**سکڼۍ** :- (س+ک+ن+ړ+ئ)(اس ـ صف)(۱) هغه جینۍ یا ښځه چې په رنګ سکڼه وي ـ (عموماً له مینې ورته دغه لفظ استعمالېږي)(۲) د غوږونو یو کالے ـ ګوشواره (ق)والۍ ـ (۳) (ق) د شاتو د مچو په ګېبې کښې د نورو سورو په مقابله کښې یو لوې سورے ، چې هغه ددغو مچو د ملکې ـ د پاره مخصوص دي ـ(دغه ملکه یا راڼۍ هم د نورو مچو نه غټه او اوږده وي) ـ

**سکڼے** :- (س+کڼ+ړے)(اس مذ ـ ج ـ ي)د دیګ یا د ګرهې د نېولو ګړۍ ـ

**سکڼے** :- (س+ک+ن+ړے)(اق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ي)کنډې ـ روپۍ وغېره کښې کنستلې شوې ـ

**سکڼ** :- (س+ک+ن+ړ)د غوږ(اوږده) ګوشواره ـ لښتې واله سکنے ـ

**سکڼے** :- (س+ک+ن+ړے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ړي)کړۍ ـ حلقه ـ

هر هر سکڼے ئې وګوره
پـه هنر رغېږي زغرې (خوشحال)

**سکنل** :- (س+ک+ن+ل) (مص)مات ځېز ترل ـ سکندر ـ د حجه کول ـ مات هړوکے په تختۍ (جبره) ترل ـ

**سکنے** :- (س+ک+نے)(رق ، اس ـ ما) برغوږے ـ ډېره ـ سرمبلۍ د غوږ د ګوشوارې یو اوږد قسم ـ

**سکنے** :- (س+ک+نے)(صف ـ مذ ـ مو ـ ئ)سکه ـ د یو مور او پلاره ـ (د مېرۍ په مقابله کښې)

**سکو** :- (س+کو)(ق ـ اس ـ مذ)درمن د الو زولو د پاره ښاخئ ـ

**سکواډ** :- (س+ک+وا+ډ)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) فرقه ـ ټولے ـ خرب ـ دسته ـ ډله ـ په فوځ کښې د یو خاص شمېر سپاهیان ـ

**ـــ لیډر** :- (لي+ډ+ر)(انګ ـ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان) د هوائي جهاز (یاد بحري) جهازونو د یوې دستې مشر یا افسر ـ

**ـــ سکواش**:-(۱) (س+ک+وا+ش) (انګ ـ اس ـ مذ ج ـونه)د مالټو سنګترو یا د نورو څېزونو په مشین او ښکلې او لږې خوږې کړې اوبۀ ـ

**سکواش** :-(۲)(س+ک+وا+ش)(انګ ـ اس ـ مذ)د یو لوبې نوم ـ چې پکښې په رېکټ (جالکي) سره ، غونډسکې په مخامخ دېوال ویشتے شي ـ دا لوبه په کوټه کښې دننه کولے شي ـ

**سکوپ** :- (س+کو+پ)(انګ ـ اس ـ مذ)وسعت ـ مېدان ـ (غایه مقصد)

**سکوت** :- (س+کو+ت)(ع ـ اس ـ مذ)خاموشي ـ چپ والے ـ چپتیا غلے پاتې کېدنه

**ـــ اختیارول**:- خاموشي اختیارول ـ چپ پاتې کېدل ـ (په جواب کښې) څۀ نۀ وئیل

**سکوټر** :- (س+کو+ټ+ر)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) د وړو پایو هغه دوه پائیز ګاډے چې ماشومان پرې یوه پښه کېږدي او په بله پښۀ ئې رغړوي ـ (۲) د دوو وړو پایو مشیني سائیکل ـ

**سکوخت** :-(س+ک+و+خ+ت)(وـــ سکوښت)

**سکور** :- (س+کو+ر) (اس ـ مذ ـ ج ـ سکارۀ) کوله ـ کوئله ـ مجازاً تک تور سرے ـ

**ـــ کانړے** :- (کا+ن+ړے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ړي)(۱) سکارۀ خسته د سکرو د چورې نه جوړ شوے غونډارے چې په ژمي کښې بلولے شي (۲) (رق) د کانړي سکارۀ ـ (۳) د سکرو جوړ ولو کانړے ـ

**سکور** :- (س+کو+ر) (اق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)ښاخۍ ـ سنګۍ ـ

**سکور** :- (س+کو+ر) (انګ ـ اس ـ مذ) حساب ـ عدد ـ عموماً هغه نمبرې کومې چې یو مقابله کوونکے یا لوبغاړے یا د لوبغاړو ډله ـ حاصلې کړي ـ په لوبه کښې د ګټلو شوو نمبرو شمېر ـ

**ـــ بورډ**:- (بو+ر+ډ)هغه (لویه) تخته ـ په کومه چې د لوبغاړو یا د مقابله کونکیو ګټلې نمبرې وغېره لیکلې شي ـ (او تماش بینو ته د لرې نه ښکاري) ـ

**سکوست** :- (س+ک+و+س+ت)(اس - مذ) د ګڼو نه وړی قېنچي کوونه - سکوښت.

**سکوست کول** :- د ګڼو په وړی قېنچي کول -

**سکوستل** :- (س+کو+س+ت+ل)(مص - مت)(و ـــ سکوښتل)

**سکوتلے** :- (س+کو+س+ت+لے)(مف - مذ - ج - سکوستلي) (و ـــ سکوښتلے)

**سکوســـتنګ** :- (س+کــو+ؤ+س+ت+ن+ګ)(ق - حمـص) (و ـــ سروســـتنه) سکوښتنه - ګڼې قېنچي کونه -

**سکوستنه** :- (س+ک+و+س+ت+ن)(حمص)(سکوښتنه - ګڼې قېنچي کونه.

**سکوستونکے** :- (س+ک+ؤ+س+تو+ن+کے)(فاع - مذ - ج ـ سکوستونکي - مو - سکوستونکې) سکوښتونکے - د ګڼې وړی قېنچي کوونکے -

**سکوستے** :- (س+کو+س+تے) (مف - مذ - ج - سکوستي - مؤ - سکوستې) سکوښتے - وړ قېنچي شوې -

**سکوښت** :- (س+کو+خ/ش+ت) (اس - مذ)د ګڼې وړی قېنچي کونه -

**سکوښتل** :- (س+کو+خ/ش+ت+ل) (مص)د ګڼو وړی قېنچي کول -

**سکوښتلے** :- (س+کو+س+ت+لے)(اس مف)هغه ګډه چې وړی ئې قېنچي شوې وي

**سکوښتونکے** :- (س+کو+خ/ش+تو+ن+کے)(مف - مذ - ج - سکوښتي) (و ـــ سکوستلے)د ګڼو وړی قېنچي کوونکے -

**سکوښتے** :- (س+کو+س+تے) (مف - مذ - ج - سکوښتي)(و ـــ سکوستلے)

**سـکول** :- (س+ک+و+ل)(مـص)(۱) د ګـڼې نـه وړی قېنچي کـول(۲) پـرې کـول - غوڅول

**ـــ ګر**:-(ګ+ر)(اس فا - مذ - ج - ان) هغه سړے چې د ګڼو وړی قېنچي کوي - د ګڼو وړی قېنچي کوونکے -

**سکول** :- (س+ک+ؤ+ل)(مص)څکول - په زمکه راکښل -

بې شمېره بازونه دي د مهر په جال بند کړل
نۀ سکوے د شناخت طناب په زاغ وزغن لا (حافظ)

**سکول** :- (س+کو+ل) (اس - مذ - ج - ونه)(۱) هغه پړے چې ونې پورې زوړند کړي - او بيا پرې جوټې خوري - ټال - (۲) د ماشومانو زانګو -

**سکول** :- (س+ک+ؤ+ل)(مص)(و ـــ ښبکول يا ښبول)

**سکول** :- (س+کو+ل)(انګ - اس - مذ - ج - ونه)(۱) مدرسه - مکتب د هلکانو جينکو د سبق وئيلو ځاے - (۲) د مکتب خيال - د يو خاص خيال او عقېدو لرونکے ډله -

**سکولل** :- (س+ک+و+ل+ل) (مص)د ګڼو وړی قېنچي کول - سکوښتل سکښتل -

**سکوللے** :- (س+ک+و+ل+لے)(مف - مذ - ج - سکوللي - مؤ - سکوللې)(و ـــ سکوستلے)

**سکولنه** :-(س+ک+و+ل+ن)(حمص)د ګڼو وړئ قېنچي کونه - د ګڼو سکښتنه -

**سکولول** :-(س+کو+ل+و+ل)(مص) سکوښتل - سکښتل - د ګډې وړی قېنچي کول

**سـکولونکے** :- (س+کـو+ل+وُو+ن+کے)(اس فـا - ج - کـي) د ګـڼو وړی قېنچي کوونکے سکښتونکے -

**سکولے** :- (س+ک+و+ل+لے)(اس - مف) هغه ګډه يا ګډې چې وړی ترې سکښتلې شوې وي -

**سکولي** :- (س+کو+لي)(اس - مذ - ج - ان)هغه هلکان (يا جينکۍ) چې په سکول (مدرسه) کښې سبق وائي - طالب علم -

**سکون** :-(س+کو+ن) (ع - اس - مذ)(۱) د حرکت ضد - نۀ خوځېدونه - بې حرکتي - (۲) قلارے - امن - (۳) اطمينان - تسلي -

**سکونت** :-(س+کو+ن+ت)(ع - اس - مذ - ج - ونه)استوږنه - استوګنه - اوسېدنه

**ـــ اختيارول**:-(ع+پ تر - مص)استوږنه - نېول - استوږن کېدل - استوږنه اختيارول - په ځاے کښې مستقل طور سره مېشته کېدل -

**سکونډاره**:- (س+کو+ن+ډا+ر)(اس - مو - ج - رے)چونډۍ - څکونډاره -

**ـــ لګول**:- (۱) چونډۍ لګول ، د چا غوښه په دوو ګوتو کښې نېول او ښۀ زور ورکول - (۲) په معمولي شان سکوډاره بل ته اشارت کول -

**سکونډل**:-(س+کو+ن+ډ+ل)(مص)(۱) سکونډاره لګول ، چونډۍ لګول - (۲) د چونډارې په ذريعه چاته اشارته کول -

**سـکونډلے** :- (س+کو+ن+ډ+لے)(مـف ، مـذ - ج - سـکونډلي مـؤ - سـکونډلې) سکونډاره لګېدلے - چونډۍ لګېدلے -

**سکونډنګ** :- (س+کو+ن+ډ+ن+ګ)(ق - حمص)(و ـــ سکونډنه)

**سکونډنه** :-(س+کو+ن+ډ+ن) (حمص)چونډۍ لګونه - سکونډاره لګونه -

**سـکونډونکے** :- (س+کـو+ن+ډو+ن+کے) (فـاع - مـذ - ج - سـکونډونکي - مـؤ - سکونډونکې)چونډۍ يا سکونډاره لګوونکے -

**سکونډه** :- (س+کو+ن+ډ)سکونډاره - چونډۍ -

**ـــ لګول**:- سکونډاره لګول - چونډۍ لګول - سکونډل -

**سکوڼ** :- (س+کو+ن+ڼ)(اس - مذ - ج - ان)شکوڼ - مشهور ځناور چې په بدن ئې تېرۀ تېرۀ او اوږدۀ ازغي (اغزي) وي - او په دښمن ئې لکه د غشو ورولي -

**سکونکے** :- (س+کو+ن+کے)(و ـــ ښبکونکے)

**سکونکے** :- (س+کو+ن+کے) (و ـــ څکونکے)

**سکونکے** :- (س+کو+ن+کے) (قا - مذ - ج - سکونکي - مؤ - سکونکې) کپړې ګنډونکے - درزي -

**سکونے** :- (س+کو+نے)(ه - صف)خونده وره - چې په سکه خوند کوي مصالحه دار -

خسوخاشاک ودال چپاتي دي
سلونـــې پاپړې سکونې بړې (شيدا)

**سکوؤنکے** :- (س+ک+وؤ+ن+کے)(و ـــ څکوونکے)

**سکوه** :- (س+ک+و)(اس - مو - ج - وے)د غلې نه د بوسو جدا کول دوه ښاخې (يا څلور ښاخې) - (ق)

**سکوے** :- (س+کو+ے) (اس - مذ)(۱) قيافه - شکل - (۲) چکن دوزي -

زړۀ د علي خان که هر څو ډېر دے پاره شوے
طمع ده چې روغ به کسيده ياد په سکوے شي

(۳) نجی (دجاسوس) ګنډنه - (۴) درزي - خياط -

**ـــ نه ځنې چيپدل**:- هم رنګ او يو شان قيانے واله کېدل - (ق)

**سکوے** :- (س+ک+وے)(اس - مف - ج - ي)غوڅ کړے - قطع کړے -

پـــه دا لړ دېدن مې سود د زړګي نۀ شي
ماړۀ شوي هېڅوک نۀ دي په غاښ سکوي (يونس)

**سکوے** :- (س+ک+وے)(اس - مذ - ج - ي) سکوے - نيم سوے - دړه يا لړګے

اوس مې بيا په دا خراب خاطر شو نوے
د اشنـــا د لــــرغونو دا غرنو سکوے (مرزاخان انصاري)

**سکوے** :- د شېطان - (خوست) شهاب ثاقب -

**سکويل** :- (س+کو+ي+ل) (مص)(۱) د ګڼو وړی قېنچي کول - سکوستل - (۲)

د څناورو څرمن مالش کول ۔ (ق) (۳) ګنډل ۔ (شلېدلے ځاے) ګنډل

**سکوېلے** :- (س+کو+ې+لے) (اس ۔ مف) (۱) هغه ګډه یا ګډېږ چې وړې ئې قېنچي شوې وي ۔ سکوللے ۔ (۲) څرمن پالش کړې شوې ۔

**سکوېنه** :- (س+کو+ې+ن) (حمص) (۱) د ګډو وړې قېنچي کونه ۔ (۲) څرمن مالش کونه ۔

**ســکوېونکے** :- (س+کو+یــو+ن+کے) (فــاع ۔ مــذ ۔ ج ۔ ســکوېونکي ۔ مــؤ ۔ سکوېونکې) (۱) د ګډو وړې قېنچي کوونکے ۔ (۲) څرمن مالش کوونکے

**سکوئېر** :- (س+کو+وے+ئ+ر) (انګ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) (۱) مربــع ۔ څلــور ګُټیز (۲) چارسو ۔ چوک ۔

**سکه** :- (س+ک) (و۔۔۔ څخه)

**سکه** :- (س+ک) (ص) خپل ۔ خوېش ۔ د یو مور پلار نه پېدا ۔

**۔۔۔ توب**:- خپلوي ۔ خوېښي ۔

**۔۔۔ والے**:- سکه توب ۔ خپلوي ۔

**سکه** :- (س+ک) (حرف ۔ بیان) نو بیا ځکه ۔

کــــه د ښکلیو د دېـــدن مینـــه ګـــناه ده

سکه خوشحال خټک درست عمر جنایت کا (خوشحال)

**سکه** :- (س+ک) (اس ۔ مو ۔ ج ۔ سکے) پنګه ۔ پونګله ۔ سرمایه ۔ سګله ۔

**سکه** :- (س+ک) (اس ۔ مو ۔ ج ۔ سکے) ډېره زیاته تنده ۔

**۔۔۔ ماتېدل**:- (۱) تنده ماتېدل ۔ څکه ماتېدل ۔ (۲) خواهش پوره کېدل ۔ ارمان رژېدل ۔

**۔۔۔**:- (س+ک) (اس ۔ مؤ ۔ ج ۔ ے) (۱) کرۀ ورۀ ۔ شباهت ۔ قواره څېره (۲) رانجۀ ۔

**سِکه** :- (س/سي+ک) (اس ۔ مـو ۔ ج ۔ سکې) د مختلفو داتونـو لکـه سرۀ زر ، سپین زر ، تانبه وغېره نه جوړه شوې پېسې ټکې ۔ سکه ۔ چې مختلف قیمتونه لري ۔

**۔۔۔ جاري** (ده):- حکومت ئې قائم ؤ ۔ بادشاهي ئې لرله ۔

بیا سکندر چې ئې سکــــه پــــه درست جهان جاري وه

پــــه دبـــــدبه پــــه سلطنت برقرار پــــاتې نــۀ شو (حافظ)

**۔۔۔ جاري کول**:- د یو بادشاه حکومت داسې سکې (پېسې ټکې) جوړول او خوره ول ۔ چې د هغۀ نوم پرې ټاپه شوے وي (دا به پخواد یو بادشاه د حکومت د استحکام نخښه وه)

**۔۔۔ رائج اولوقت**:- (را+ئ+ج+ل+و+ق+ت) (عپ تر) هغه سکه چې په دغه خاص وخـت کښې جـاري وي ۔ زر قبلېــږي ۔ دا جملـه عمومــاً د لــېږ دېږ پــه رسیدونو او په سټامونو کښې د روپو د تعداد سره لیکلے شي ۔

**۔۔۔ قلب**:- (ق+ل+ب) (عـپ تـر ۔ مـو ۔ ج ۔ سکے) (۱) کوټـه سکه ۔ کوټـه روپـۍ وغېره ۔

(۲) هغه څیز چې څوک ئې نۀ قبلوي ۔ (په پښتو کښې قلپه هم وائي)

**۔۔۔ وهل**:- (مو تر ۔ مص) مختلفو داتونو د ټاپې د لګولو په ذریعه پېسې ټکې جوړول ۔

**سکه** :- (س/سي+ک) (اس مع ۔ مذ ۔ ج ۔ ان) د هنـد د یـو قـوم غـړے ۔ چې ځان له یو جدا مذهب لري ۔ دا مذهب ګرونانک صاحب روان کړے ؤ ۔ د هندوانو خلاف ، د یـو خـداے منـونکي دي ۔ ددوي د کتـاب نـوم ګرنتـه دے په دې کښې ډېرې خبرې د مسلمانانو صوفیانو نه هم اخستے شوې دي ۔ وروستو ددوي نه یو جنګیالے قام جوړ شۀ ۔ په دوي کښې رینجت سنګهـ ځان له په پنجاب کښې یو حکومت جوړ کړو ۔ د درانیانو (پښتنو) د بې اتفاقۍ په وجه ئې تر خیبر پورې ملک ئې د پښتنو نه هم ونیوو او څۀ موده ئې ډېر په ظلم زور باچاهي وکړه ۔

**سکهاشاهي** :- (س+/سي+کا+شا+هي) (هپ تر ۔ اس ۔ مو) د سکهانو بادشاهي ۔ کنایه: بې قانونه بادشاهي ۔ د بې انصافۍ ۔ ظلم زور زمانه

**سکۍ** :- (س+ک+ی) (اس ۔ مو) د ګیا یـو مشـهور قسـم دے ۔ لکـه برګـه د شوتلو یو قسم دے ۔

**سکي** :- (س+کي) (انګ ۔ اس ۔ مو ۔ ج ۔ ګانې) د لرګي هغه اوږده پټه ۔ چې بوټانو پورې تړلے شي ۔ او بیا پرې په واوره (د لوړې نه په ښکته) خوئېږي ۔

**۔۔۔ کول**:- د لرګي په خاصو تختو په واوره باندې د لوړې نه په ښکته په تېزۍ سره خوئېدل ۔

**سکے** :- (س+کے) (اس ۔ مذ) بلخے ۔ نرے ښکلے ګډ ۔

**۔۔۔**:- (س+کے) (ق ۔ اس ۔ صوت) د سخي د شړلو اواز ۔

**۔۔۔**:- (س+کے) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ سکي) حباب ۔ بوربورکے ۔

د یــو خولـــــې له پوکیه

ښه لوئي کړے اے سکیه (ارزاني)

**سکېټ** :- (س+کے+ټ) (انګ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) د فولادو یا بل کوم دات جوړه شوې هغه خاص پایو واله کښا وه ۔ چې بوټانو سره وتړلے شي ۔ او بیا پرې کنګل شوې واوره خوئېږي ۔

**سکېټر** :- (س+کے+ټ+ر) (انګ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ان) هغه لوبغاړے چې سکېټ (پایه دارو کښاوو) خوئېږي ۔

**سکېچ** :- (س+کي+چ) (ق ۔ اس ۔ مذ) یو قسم بوټے دے ۔ زېړ ګلونه کوي رانجۀ ترې جوړلوے شي ۔

**۔۔۔**:- (س+ک+چ) (انګ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) (۱) د تصویرو وغېره اولنۍ کرښې چې بیا وروستو پکښې رنګ ډکولے شي ۔ (۲) خاکه ۔ خلاصه ۔ لنډیز

**۔۔۔ جوړول**:- (۱) خاکــه جــوړول ۔ د تصــویر وغېــره بیرونــي کرښــې جوړېــدل (۲) خلاصه جوړول ۔ لنډیز تیارول ۔

**سکېدل** :- (س+کې+د+ل) (مص) د غوئي ۔ سخوندر مستېدل ۔ غوئې ډېر فربه شو ۔ مستي واخست ، سکبده ۔ غرچېدۀ ۔

**سکېرلے** :- (س+کې+ر+لے) (صـف ۔ مـذ ۔ ج ۔ لي) دوځ ګرځے ۔ کرلے ۔ سپېرۀ ۔ بدشګوم ۔

**سکېزلے** :- (س+کې+ز+لے) (اس ۔ مذ) بخې ۔ د ګوتو نرۍ او ښکلے ګډ ۔

**سکېل** :- (س+کې+ل) (انګ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) (۱) تله ۔ ترازو ۔ میزان ۔ (۲) درجه بندي ۔ پیمانه ۔ مېچ وېش د کچ پیمانه ۔

**۔۔۔ د تنخواه**:- د تنخواګانو په درجه بندۍ کښې د کومې خاصې درجې مقرره تنخواه ۔ چې دا به د څومره روپو نه شورو کېږي ۔ څومره بـه هر کـال زیـاتولے شي ۔ او تر کومه حده به رسي ۔

**۔۔۔ ډرائنګ**:- (ډ+را+ا+ن+ګ) (انـګ تـر ۔ اس ۔ مـذ) د ډرائنګ هغه قسم چې پکښې د فرنیچر د څیزونو وغېره ؤ ډرائنګ د یوې خاصې پیمانې (کچ) مطابق کولے شي ۔

**سکیلوے** :- (س+کے+ل+وے) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ي) (۱) نرۍ ژړا ۔ زوېرګے ۔ (۲) لوې طباخ ۔ غورۍ ۔

**سکیلے** :- (س+کے+لے) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ لي) یو قسم د وېښتو نه جوړ شوے دام چې مرزان پرې نېولے شي ۔

**سکیم** :- (س+کي+م) (قا اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) لویــه بــوجۍ ۔ بــورۍ (دغلے وغېره)

**۔۔۔**:- (س+کي+م) (انګ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) (۱) نقشه ۔ تجویز ۔ پلان ۔ منصوبه ۔ (۲) سازش ۔

**۔۔۔ جوړول**:- (۱) پلان جوړول ۔ نقشه جوړول ۔ د څۀ کار کولو لارې چارې جوړول

۔(۲) سازش کول۔

**سکِّین** :- (س+ک+کي+ن)(ع ۔ اسم) چاړهٔ ۔

**سکیندن** :- (س+کـي+ن+د+ن)(حمص) څکـل ۔ څکـه ول ۔ ذائقـه اخیسـتل ۔ څکیندن

**سکیندهٔ** :(س+کي+م+د) (ق اس ۔ مـو ۔ ج ۔ د ے) د لرګـي وړه تختـه چـې مـات هډوکي پرې تړلے شي ۔ جیره ۔ چچه ۔ کړک ۔

**سکیند به** :-ب(اس فا ۔ ج ۔ ګان) سکنده کوونکے ۔ کوشیروونکے ۔ مات څیز رغوونکے ۔

**سکینده کول** :مات شوے هډوکے د لرګي د تختو په ذریعه تړل ۔

**سکینول** :- (س+کـے+ن+ړ+ل) (انـګ ۔ اس ۔ مـذ ج ۔ ونـه) تورلګونـه ۔ تهمـت لګونه ۔ سپکاوے رسوائي ۔ اختراء ۔ یوه جوړه شوې قیصه ۔

**ـــ جوړل**:۔ چا پورې څهٔ داسې تور تړل ۔ چې هغه پرې بدنام او رسوا شي ۔

**ـــ جوړیدل**:۔ چا پورې داسې تور تړل کېدل ۔ چې هغه پرې بدنام او رسوا شي ۔

**سکینه** :-(س+کي+ن) (ع ۔اس ۔ مو) (۱) د زړهٔ سکون ۔ اطمېنان ۔ (۲) د حضرت امام حسین ﷺ د لور بي بي نوم ۔ (۳) د مسلمانانو د ښځو یو نوم ۔

**سکیبر** :- (س+کي+ي+ر)(انګ ۔ مو ۔ مذ ۔ ج ۔ ان) د سـکي (دړدنـګ) پـه ذریعه په اواوره باندې خوئېدونکے لوبغاړے ۔

**سګ** :-(س+ګ)(ف ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ان)(۱) سپے مشهور ځناور

چې په زبان د عقبیٰ سود د دنیا اخلي

لـه هغــو سړیو ډېر ښهٔ دي سګات (سعید)

(۱) حریص ۔ بد خویه

پـــه کـاتهٔ شم وعالم وته حېران

چې د نس د پاره څهٔ کا دا سګان (خوشحال)

**ـــ دیوانه**:۔لېونے سپے ـــ شمارل:سپے ګڼل ۔ بدخویه ګڼل ۔

**ـــ لاهو**:۔ (لا+هو) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ګان)د اوبو سپے ۔ یو خاص ځناور ۔ سنګلاهو

ـــ:۔(س+ګ)(ص ۔ مذ)(وـــ سبز)

**ـــ کال**:۔ (کـا+ل) (وـــ سرِکال)**ر** :- (س+ګا+ر)(انـګ ۔ اس ۔ مـذ ۔ ج ۔ ونـه) نغښتو تمباکو په قلم شان ۔

**سګال** :- (س+ګا+ل) (ف ۔ اس ۔ مـذ)خیال ۔ فکر ۔ عموماً نـورو الفـاظو سره یو ځاے راځي ۔ لکه بدسګال۔

لـــه ســروره مـــې جارباسي وشورته

بدسګال به سخت په ورځ د محشر نیسم (حافظ)

**سګرټ** :- (س+ګ+ر+ټ)(انګ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) د خـاص کاغـذ نلکـې چې پکښې د مشین په ذریعه تماکو نغښتې شوے وي ۔

**سګک** :- (س+ګ+ک)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ان)کبړے ۔ جراسک ۔

ـــ:۔س+ګ+ک) (ق اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) د تسمې په سر د اوسپنې وغېره کړئ۔ تسمه بند۔

**ګل** :- (س+ګ+ل) (مص) په هډوکو ژړل ۔

ـــ:۔(س+ګُ+ل) (اس ۔ مذ) یـو قسم د اوچتـې پونـدې ګرګـابې چـې د کچـه ځرمنې نه جوړه وي ۔ او په اوچتو اوچتو غرو ختونې په پښو کوي ۔

**سګلادو** :- (س+ګ+لا+دو) (پ(ظفر) اس ۔ مذ) سګ لاهو ۔ د اوبو سپے ۔

**سګلې** :- (س+ګ+ل+ی) (اس ۔ مو) ایتکے ۔ سلګۍ ۔

**سګنل** :-(س+ګ+ن+ل) (انګ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) (۱) اشـاره ۔ اشـارت ۔ (۲) د رېل ګاډي د ډرائیور د پاره لوړې ستنې پورې لګیدلې د لاس پـه شـان تخته چې د اودربدلو او روانېدلو اشاره ورکوي ۔ چې دا پـه افقي حالت کښې ورکوي نو د بندېز اشاره وي او چې ښکته رازوړنده وي نو دغه اجازت نخښه ۔ وي ۔ (عوام ورته سنګل هم وائي)

**ـــ ډون کېدل**:۔ (۱) د رېل ګاډي د اشارت لاس پـه ښکته زوړند پـدل ۔ چې ربـل ګاډي تـه د حرکت کولو (تلو د راتلو) اشارت ورکوي (۲) (عـوام) نا مړه کېدل د سړي په اندام کښې انتشار نهٔ کېدل ۔

**ـــ ورکول**:۔ (۱) اشاره ورکول ۔ (۲) په اشاره کښې پوهول ۔

**ـــ وکول د خطرې**:- داسې اشاره ورکول چې بل ترې د څهٔ پېښېدونکې خطرې یا افت نه خبردار شي ۔

**سګنیلو** :- (س+ګ+نـي+ل+ر) (انـګ ۔ اس ۔ مـذ ۔ ج ۔ ان) (۱) د ربـل ګـاډي ۔ د ستېشن هغه ملازم چې د ګاډي ډرائیور د پاره د سګنل لاس ښکته پورتـه کوي ۔ سګنل واله ۔ (۲) په فوج وغېره کښې هغه سړے چې د یـو ځـاے نـه بل ځاے ته د جنډو یا د رڼا د پړق په ذریعه پېغام ورکوي او وصولوي ۔

**سګه** :- (س+ګ) (ق ۔ اس ۔ مذ) (۱) سرمایه ۔ پنګه ۔ ذخیره ۔ (۲) فائده ۔

ـــ:۔(س+ګ)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ سګے) غرڅنې ۔ د غرهٔ اوسی ۔ سیېره ۔

**سګے** :- (س+ګے)(اس ۔ مذ)(وـــ سږے)

**سل** :- ( س+ل)(اس عدد)پنځهٔ شلې ۔ لس ځله لس ۔ صد ۔ (اردو:سو) د زیات شمار د پاره سوه راځي ۔ لکه دوه سوه ۔ اتهٔ سوه۔

**ـــ پاڼې**:۔ (ق)(اس ۔ مذ)صد برګ ۔ مشهور ګل نوم ۔

**ـــ په سل**:۔(پ+س+ل) (پ تر)په سلو کښې سل واړه یعني ټول همه بغېر د څهٔ کمي یا زیاتي ۔

**ـــ زر کاله**:۔ ډېر زیات عُمر ۔

که سل زر کاله ئې تېر شي په اوبو کښې

پـــه نـــرمی بـه نرمه نـهٔ شي وچه تراړه (رحمان)

**ـــ ژبے**:۔ (ژ+بے)ځبے(ج+بے)ګل صد برګ ۔

**ـــ کلن**:۔ (ک+ل+ن)(پ تر ۔ صف ۔ مذ ۔ مو ۔ نه)د سلو کالو ۔ صد ساله ۔

**ـــ کلیزه**:۔ (ک+لي+ز) (اس تر ۔ مو ۔ ج ۔ زے) (۱) د سل کلیـز تانیـث ۔ (وسـل کلیز) ۔(۲) د سلو کالو (عمر) په پوره کېدو خوشحالي مناوول ۔ د سل کـالو د تېرېدو ورځ مناوؤل ۔ سل کلنے جشن کول ۔

**ـــ ګزه ژبه/جبه**:۔ ډېر اوږده ژبه (جبه) ډېرې خبرې کوونکے ۔ خبر لوځـه ۔ (عموماً په خرابه معنیٰ کښې استعمالېږي ۔ بې لحاظه ۔ بدګویـه ۔ کنځـل مـاره هـر چاله جواب ورکوونکې)

**ـــ ګونه**:۔ (ګو+ن)(اس عدد)مجازاً ډېر زیات (په شمېر کښې)

**ـــ مشر**:۔ (م+ش+ر) (ق ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ان) په فـوځ کښې هغـه افسر چې سـل سپاهیان ئې د لاندې وي ۔ د سلو سپاهیانو افسر(په افغانسـتان کښـې یـوه فوځي عهده ده)

**ـــ مني**:۔ (م+ني)(اس ۔ صف) د سلو منو ۔ مجازاً ډېر دروند او غټ۔

که مې ولي په سر کاني سل مني

زمـــا خـوښه ده د یار کبرومتي (حمید)

**ـــ ها**:۔ سلګونه ۔ سوونه ۔

**په ـــ رنګه**:۔ په سلو طریقو ۔ په سل اندازه۔

لـــه شبخی راتـــه بهتـــره، رندي بیا

ناصحان که مې په سل رنګه غندي بیا (حمید)

**په ـــ ها**:۔ (۔هیا) (په هاؤ (هیا+وے)(عدد) پـه سلګونو پـه سوونو ۔ مجازاً ډېر زیات شمېر کښې ډېر شمېره ۔

ـــ:۔ (س+ل)(اس ۔ مـذ ۔ ج ۔ ونـه) جالـه ۔ د کشـتۍ یـو قسم دے چې مشکونه وربورې تړلے شي ۔

ـــ:۔ (س+ل)(مـو ۔ اس ۔ مـذ)(۱) د پېـرزو ۔ پېرزونـه ۔ پېرزوینـه (۲) تسـله ۔ اطمېنان

**ـــ کېدل**:۔ پېرزو کېدل ۔

**ـــ**:۔(س+ل) (اس ۔ مذ)د يوې بيمارۍ نوم دے عموماً "سل دق" يا ځاے وئيلے کېږي ۔ دا عموماً په پړپوس کښې زخم پېداشي او بني ادم ويني غورځوي ۔ ټوخے هم ورسره وي په انګريزۍ کښې ورته ټيوبرکلوسز وائي ۔ چې مخفف ئې "ټي بي" دے دا لفظ په پښتو کښې عام استعمالېږي ۔

**ـــ د سږي**:۔(د+س+ږي/ژي) د سل مرض چې په سږي ولګي ۔

**ـــ د هډوکو**:۔(د+ه+ډو+کو) د سل مرض چې په هډوکو لګېدلے وي ۔ يا لګي

**ـــ ورلوئېږي**:۔د سل بيماري ولګي ۔ د سل په مرح ناجوړه کېږي ۔

**سلا** :- (س+لا)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ ګانې)د صلاح بدل شکل دے ۔ مشوره ۔ رائے ۔ خوښه ۔

**ـــ پاڼه**:۔(پا+ن+ړ)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ ړے) ليکلے شوے سلاغوښتنه ۔ ("سلا" د صلا بدل شکل دے)

**ـــ پوښتل**:۔صلاح پوښتل ۔ مشوره اخستل رائے معلومول ۔

**ـــ غوښتل (دچانه)**:۔صلاح غوښتل ۔ مشوره غوښتل ۔ د څۀ معاملې په حقله د چانه د هغۀ رائے غوښتل ۔

**ـــ غوښتنه**:۔ (غُ+خ/ش+ت+ن)(اس تر ۔ مو ۔ ج ۔ نې) هغه مطلب چې چاته د غور کولو او منظورولو يا رد کولو د پاره وړاندې کړے شي ۔ (ف:پيش نهاد) (سلا په اصل کښې د صلاح وران شکل دے)

**ـــ کول**:۔ مشوره کول ۔ صلاح کول ۔

**ـــ ګرے**:۔ (ګ+رے)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ي) صلاح کار ۔ د چانه چې په څۀ کار کښې رائے يا مشوره اخستے شي ۔ (سلا د صلاح بدل شکل دے)

**ـــ ګري**:۔ (ګ+ري) صلاح ورکوُنه ۔

**ـــ مشوره کول**:۔ صلاح کول ۔ سره يو ځاے کېدل ۔ او په څۀ خبره سوچ فکر کول او رائے سره يوه کول ۔

**ـــ نۀ ورکول**:۔ (۱) مشوره نۀ ورکول خپله رائے ۔ (په څۀ معامله کښې) نه ورښودل ۔ (۲) د څۀ کار کولو نه منع کول ۔ خلاف رائے ورکول ۔ د څۀ کار د نۀ کولو مشوره ورکول ۔

**ـــ ورکول**:۔صلاح ورکول ۔ مشوره ورکول ۔ خپله رائے ورښودل ۔

**ـــ په رضا**:۔په رضا صلاح ۔ په خپله خوښه ۔

**سلا بلا** :- (س+لا+ب+لا)(مفع)ناحق ۔ بې موجبه ۔ بې سببه ۔

**ـــ کارکول**:۔ بې سببه يا بې موجبه کار کول ۔

**سلا پل** :- (س+لا+پ+ل) (ق مو ۔ صف) تباه ۔ برباد ۔

**سلاټه** :- (س+لا+ټ) (اس ۔ مو ۔ ج ۔ ټې)شلانټه ۔ شلانپره ۔ څمڅره ۔ سلاټه چې خربه شي نو د چوړې کور غواړي ۔ (متل)

**سلاجيت** :-(س+لا+جي+ت) (ه ۔ اس ۔ جم) د يو قسم دارو نوم دے ۔ چې د غرونو د کاڼو نه د ټينګو تارکولو په شان راووزي ۔ عموماً د طاقت د پاره استعمالولے شي ۔

**سلاح** :- ( س+لا+ح)(ع ۔ مو) وسله ۔ د جنګ الات (لکه توره چاړۀ ټوپک وغېره)

تۀ سلاح د خپل توفيق زما تر ملا کړه
چې تيار شم وغليم ته سپاهي (خواجه محمد )

**ـــ بند**:۔(ب+ن+د) (عف تر ۔ صف)وسله تړلے ۔ وسله بند ۔ هغه سړے چې وسله ، (د جنګ سامان) ئې په بدن پورې تړلے وي ۔

**ـــ پر ښودل**:۔وسله پرېښودل (په جنګ کښې)

**ـــ پوش**:۔ (پو+ش)(وـــ سلاح بند)

**ـــ خانه**:۔ خا+ن (عف تر ۔ اس ۔ مو ۔ ج ۔ نې) هغه محفوظ ځاے چېرته چې د جنګ وسله کښېښودے شي ۔

**ـــ کوټ**:۔ (کو+ټ)(انګ ۔ اس ۔ مذ)هغه نښان چې په اوږه تړلے کېږي ۔

**ـــ سلاح کوټ اجراء کول**:۔ چاله په اوږه تړلو خاص اعزازي نښان ورکول ۔

**سلاد** :- (س+لا+د)(انګ ۔ اس ۔ جم) د کاهو د بوټي شنې پاڼې چې کچه خوړلے شي ۔ دې ته هم سلاد وائي ۔ خو دې سره نور څيزونه هم ګډولے شي ۔ يعني د خوراک داسې څيزونه چې کچه خوړلے شي ۔ لکه ګاځره ۔ مولۍ ۔ تره ۔ چقندر ۔ پياز ۔ ټماټر وغېره نرۍ نرۍ پرې کړے شي او مالګه مصالحه او ترُشي پرې واچولے شي ۔

**سلار** :- (س+لا+ر)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ رے)د زنانۀ ربښمن څادر ۔

**سلاري** :- (س+لا+ري)

**سلاري** :- (س+لا+ر+ي)(اس مو) د زنانۀ ربښمن څادر ۔

**سلاست** :- (س+لا+س+ت) (ع ۔ اس ۔ مذ)اسانتيا ۔ په لوستلو يا پوهېدلو کښې اساني ۔ په ليک يا عبارت کښې هوارے او اسانتيا ۔ داسې ليک چې پکښې ګران ګران او په وينا کښې سخت ټکي نۀ وي استعمال شوي ۔

**سلاست زبان**:- (ز+با+ن)(عف تر ۔ اس ۔ مذ) د ژبې سلاست ۔ د ژبې اسانتيا او رواني يعني چې په ژبه (ليک) کښې ګران ګران او په وينا کښې سخت الفاظ نۀ وي استعمال شوي ۔

**سلاسل** :- (س+لا+س+ل)(ع ۔ اس ج)(۱) د سلسله جمع ده ۔ زنځيرونه ۔ د پښو زنځيرونه (۲) بېړۍ ۔ زولنې ۔ ځولنې ۔ پيکړے ۔

سلاسل،اغـلال، انکار د کافرانو
مسلمان حافظ امان غواړي عادله

**سلاطين** :- (س+لا+طي+ن)(ع ۔ اس ۔ ج) د سلطان جمع سلطانان ۔ بادشاهان ۔

**سلالي** :- (س+لا+لي)(وـــ سلاري)

**سلام** :- (س+لا+م)(ع ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)(۱) مننه ۔ تسليم کونه ۔ سلامتيا امان ۔ (۲) السلام عليکم وئيل ۔ يعني په تاسو دې سلامتيا او امن وي ۔ (۳) د خداے پاک يو ښکلے نوم ۔ (۴) يو خاص قسم نظم چې کم از کم په وړومبني شعر کښې ئې سلام وي او بيا د کربلا په حقله شعرونه وي ۔

**ـــ اخستل**:۔(عپ تر ۔ مصدر)(۱) د چا د سلام جواب ورکول يعني د السلام عليکم يا د السلا عليکم په جواب کښې د عليک يا "وعليکم السلام" وئيل يعني په تا دې (هم) سلامتيا او امن وي ۔(۲) د سلام جواب د لاس يا د سر په اشاره ورکول ۔

**ـــ اخستونکے**:۔ هغه کس چې د چا د سلام جواب ورکړي يعني وعليکم السلام ويونکے ۔ سلام قبلونکے ۔

**ـــ بيا کول**:۔ سلام وربرغول ۔ د سلام جواب ورکول ۔

**ـــ جارباسل**:۔ (وـــ سلام ګرځول)

**ـــ دين**:۔(دي+ن)(عپ تر ۔ اس مذ ۔ ج ۔ ان)ډېر سلامونه کوونکے ۔ خوشامد ګرے

**ـــ رسول**:۔(عپ تر ۔ مص)د چا د طرفه ۔ چاته اسلام عليکم وئيل ۔

**ـــ سپارل**:۔ د چا په خوله سلام ورلېږل ۔ چاته وئيل چې فلاني ته سلام ورسه وه

**ـــ قبلول**:۔(عب تر ۔ مص تر)(۱) د چا د سلام روغ سنت منل ۔ (۲) د چا د پېښے يا د راتلو مننه کول ۔

**ـــ کول**:۔(عپ تر ۔ مص)(۱) چاته السام عليکم وئيل ۔ (۲) چاته د لاس يا د سر په اشاره سلام (السلام عليکم) وئيل ۔ (۳) (طنزاً) معافي غوښتل ۔ بخښنه غوښتل ۔ يعني د چانه ځان خلاصول چې ما پرېږده ۔ مانه لاس واخله (۴) چاته څۀ کار يا خبره يا خپل ځان وربه يادول ۔ لکه شوک چاته ووائي چې لاړشه ، فلاني ته ووايه چې فلاني سلام کاوه ۔ (هغه پوهه شي چې د سلام کولو نه څۀ مطلب دے)(۵) پښنې ښځې د سلام په موقع پوره الفاظ نۀ

استعمالوي ـ بلکې وائي چې "سلا کوم" (۶) د چا د کارنامې ـ لوړوالي وغېره ـ اعتراف کول ـ لکه د امام حسېن ﷺ حوصلې ته سلام کوم ـ

**ـــــ کوونکے**:ـ(ک+وو+ن+کے)(اس ـ نا ـ ج ـ کي)هغه کس چې سلام کوي ـ سلام کولو واله ـ

**ـــــ گرځول**:ـ (عپ تر ـ مص)(۱) د مانځهٔ په اخر کښې مخ ښي طرفته او گس (کيڼ) طرفته گرځول او په خوله ورسره السلام عليکم ورحمته الله ـ وئيل ـ (۲) مونځ ختمول ـ

**ـــــ منظور دے**:ـ يو کس چې د مختصر وخت د پاره چاله ورشي ـ نو وائي چې زما سلام منظور دے ـ يعني زما د مختصره شان حاضري منظوره ده ـ

**ـــــ منظورول**:ـ (وـــ سلام قبلول)

**ـــــ نهٔ اخستل**:ـ (عپ تر ـ اس) د چا سلام جواب نهٔ ورکول ـ کنايه سپک گڼل ـ هېڅ نهٔ گڼل ـ

**ـــــ وئيل(په چا باندې)**:ـ د چا په خوله يا د خط په ذريعه چاته سلام استول ـ

**ـــــ شاهي**:ـد بادشاهانو د رسم مطابق سلام ـ

**سلامالیک** :ـ(س+لا+ما+لے+ک)(عربی جمله)د السلام عليک وران شکل دے يعني په تا دې سلام وي ـ

**ـــــ سره لرل**:ـ چا سره تگ راتگ لرل ـ چاسره پېژنگلو لرل ـ چاسره اشنا "بودل"

**ـــــ**:ـ (س+لا+ما+لے+ک) (عربي جمله )(ق) د يو قسم بوټي نوم دے چې گل نهٔ لري ـ د ښاروو خوراک دے او د صحرا خلق ئې کچه هم خوري ـ

**سلامت** :ـ(س+لا+م+ت)(ع ـ مذ)په روغتيا ـ بې عيبه ـ صحيح ـ روغ ـ په خېريت

**ـــــ اوسے**:ـ (او+سے)

**ـــــ اوسئ**:ـ (او+س+ئ) (دعائيه جمله) روغ جوړ اوسئ يا اوسے عموماً د مبارک شه ! په جواب کښې وئيلے شي ـ د تعريف ستائنې په موقع هم وائي ـ افرين ـ شاباس ـ

**ـــــ اوسېدل**:ـ روغ پاتې کېدل ـ روغ اوسېدل ـ

چې لتا سره ياري کړي
سلامت به اوسي چېرې (خوشحال)

**ـــــ پرېښودل**:ـ روغ پرېښودل ـ صحيح سلامت پرېښودل ـ

وړې سرگې د اسمان څهٔ هسې ستا دي
چــې څوک پرېږدي سلامت په دا دنيا (رحمان)

**ـــــ درومل**:ـ روغ بېچ کېدل ـ بغېر د څهٔ نقصان ضرره خوړپاتې کېدل ـ محفوظ پاتې کېدل ـ

د شرگـــانو نادکي ئــې هسې نهٔ دي
چې به څوک ورځني درومي سلامت (خوشحال)

**ـــــ روي**:ـ(ر+وي) (عپ تر ـ اس ـ مو) داې لار چې پکښې سلامتيا او امن وي ـ مجازاً ميانه روي ـ

**ـــــ روي اختيارول**:ـ داسې لار نيول چې پکښې سلامتي او امن وي مجازاً د ميانه روئي يعني اعتدال طريقه کار اختيارول ـ

**ـــــ کېدل**:ـ بچ کېدل ـ محفوظ کېدل ـ

لار د ثواب واخلــه وبل لور تـــه قدم ماخله
دورمه سليم زړهٔ چــې سلامت شي لروباله
(حافظ)

**ـــــ باچا**:ـ (با+چا) بادشاه ـ (با+د+شا+ه)(عپ تر) دعائيــه جملــه ـ يعنــي باچا(بادشاه) د سلامت وي ـ دا جمله بادشاه ته د مخاطبې کولو په موقع وئيلے شي ـ په قيصو کښې ډېر استعمالېږي ـ

**ـــــ صحيح**:ـ (ص+حي(ح)ـ) روغ رمټ ـ روغ جوړ عموماً په سفر يا په مهم يا په جنگ تلونکي ته دعا په لور وئيلے شي ـ چې صحيح سلامت لاړشے او صحيح سلامت راشے ـ يا د داسې قسم سفر د روغ جوړ راتلونکي په حقله وئيلے شي چې هغه د جنگ د مېدان ته صحيح سلامت راغے ـ

**سلام عليک** :ـ (س+لا+م(ع+)لے+ک)(ع ـ مذ) سلام عليک ! په تا دې سلام وي تهٔ دې سلامته او په امن اوسې ـ

**ـــــ "بودل" (چاسره)**:ـ چاسره تعلق بودل ـ پېژندگلو يا واقفيت "بودل" (چې زيات زور (څور) تعلق يا دوستي نهٔ وي) لکه او ـ هغه سره م تش سلام عليک شته ـ

**ـــــ لرل (چاسره)**:ـ تعلق ساتل ـ تگ راتگ ساتل ـ

**سلامُ عليکم** :ـ (س+لا+م+ع+لے+کُ+م) (عربي جمله) عربي جمله ده مسلمانانو د روغبړ په موقع وائي په تاسو دې سلام وي ـ اهل جمله السلام عليکم ده ـ چې عموماً الف لام ورسره نهٔ وائي ـ

**ـــــ کول(چاسره)**:ـ چاته سلام عليکم وئيل او بيا جواباً وعليکم السلام وئيل ـ سترې مشې خوار مشي کول ـ چاسره ـ روغبړ کول ـ

**سلامونه** :ـ (س+لا+مو+ن) د سلام جمع ده ـ ډېر سلامونه ـ

**ـــــ کول**:ـ(۱) ډېر ډېر سلام وئيل ـ (۲) پناه غوښتل د چانه ـ لرې والے غوښتل ـ (۳) ډېره خوشامنده کول ـ

**سلامي** :ـ (س+لا+مي)(اس ـ مو)(۱) سکام کوُنه ـ (۲) فـــوجي انـــداز ـ د ټوپک وغېره په ذريعه افسر ته سلام کونه ـ(۳) د سلام يا د پخېر راغلـ يا د عزت او درناوي په طور چا يا چاته يا د کوم ملک صدر تـه د مقرره شمېر توپې خلاصول قامي ورځې په يا د او درناوي کښې توپې خلاصول ـ (۵) هغـه رقم چې د وادهٔ هلک يا ناوې تـه د سلام کولو په بدلـه کښـې ورکولے شي ـ

**ـــــ اخستل**:ـ د فوج د دستې په فوجي انداز سلامي ورکولو په موقع چې سلامي اخستونکے په فوجي انداز لاس تندي لـه وړي په جواب کښـې سلوټ کول ـ

**ـــــ کول**:ـ ماتې ورکول ـ شکست ورکول ـ

**ـــــ کېدل**:ـ (عپ تر ـ مص) ماتې منل ـ شکست منل ـ

**ـــــ ورکول**:ـ(عپ تر ـ مص)(۱) د وادهٔ زلمي او ناوې لـه د وادهٔ په موقع د سلام کولو په بدله کښې د رواج مطابق څهٔ نغد رقم ورکول ـ (۲) د چـا باچـا يـا لوې سړي يا افسر ته د درناوي په توگه په فوج طريقه (د ټوپک په ذريعه) سلام کول ـ (۳) د يو ملک باچا ، يا صدر وغېره چې بـل ملک تـه لاړشي ـ نو د هغهٔ په اعزاز او درناوي کښې يو خاص شمېر توپې خلاصولے شي دې تـه هم سـلامي ورکـول وائـي ـ (۴) د يـو ملک پـه کومـه خاص ورځ ـ لکـه ازادۍ ورځ ـ يو خاص شمېر توپې د سلامۍ په طور خاصول ـ

**د عسکرو ـــــ نيول**:ـ د فوج سلام اخيستل ـ

**سلاو** :ـ (س+لا+و)(اس ـ مع)د بني ادمويو نسل چې په مشرقي يورپ کښـې خور شوے ؤ ـ

**سلاواکي** :ـ (س+لا+وا+کي)(ق ـ اس)مشروطه ـ د حکومت د چلولو يو مجلس پارليمينټ ـ

**سلاوي** :ـ (س+لا+وي)(صفت)د ژبو ويش کښې د ژبو يوه څانگه سلاوک

**سلاوے** :ـ (س+لا+وے)د سلا جمع ـ رايونه ـ ارا ـ د صلاح وران شکل دے ـ د صلاح په صورت کښې به ئې جمع صلاح(ح) وي ـ

**سلائي** :ـ(س+لا+ئي)(اس ـ مو ـ ج ـ انې)(۱) د رنجو اچولو وړوکے شان نرے او هوار ډکے ـ(۲) د پلاسټکو يا د دات هغه اوږدنرے هوار ډکے ـ چې بنيونه جرابې پرې جوړولې شي (۳) (ق) د يوې حشر نوم دے(۴) چابي ـ کنجي ـ (ظفر)

**سلائيس** :ـ (س+لا+ئي+س)(انگ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د ډبل ډوډۍ يا د بل څهٔ

ځيز يوه پرېکړې ټکره۔

**سلب** :- (س+ل+ب) (ع۔اس)نفي۔نفي کونه۔وړل۔نيست کونه۔

**ــــ کول**:۔ نفي کول۔نيست کول۔نيش کول۔

**سلبي** :- (س+ل+بي)(ع۔صف)نفي کوونکے۔نيست کوونکے۔

**ــــ قوت**:۔ هغه قوت چې د څۀ نفي کوي۔منفي قوت۔

**سلپ** :- (س+ل+پ) (انګ اس۔ مذ۔ج۔ونه)د کاغذ وړه شان ټوټه۔رقعه۔

ــــ:۔(س+ل+پ) (انګ۔فعل) خوئېدل۔

**ــــ کول (ډګاډي)**:- د واورې يا د ختې په وجه د موټر لارۍ وغېره (د سمې لارې نه بل طرفته) خوئېدل۔

**سلپ ناټ** :-(س+ل+پ+نا+ټ) (انګ۔اس۔ مذ۔ج۔ونه) يو قسم غوټه۔چې سکاوټانو او فوځيانو ته ښودلے کېږي۔دا د يو ځاے نه خوئېږي نه

**سلت** :-(س+ل+ت) (تابع مهمل) دا لفظ عموماً غلط سره د تابع مهمل په طور راځي۔لکه:غلط سلت يا غلط سلط جواب ئې ورکړو(ځينې خلق شلط يا شلت هم وائي)۔

ــــ:۔ (س+ل+ت) (ق۔صف)د سلامت مخفف دے۔(وـــ سلامت)

**سلته** :-(س+ل+ت) (اس۔مو۔ج۔تې) مورچل۔سنګړه۔څوکۍ۔استحکام۔ مضبوطوالے۔

**سلټ** :- (س+ل+ټ)(ق۔اس۔ مذ) صبر۔سنګر۔

ــــ:۔(س+ل+ټ)(اس۔ مذ۔ج۔ونه) (۱) نخښه۔ګلزېږے۔هدف۔ (۲) ډال۔

**سلټه** :- (س+ل+ټ)(ق۔اس۔مو)(۱) استحکام۔کلکوالے۔(۲) سنګر۔

**سلح** :- (س+ل+ح) (وـــ سلاح)

**سلحشور** :-(س+ل+ح+شو+ر)(ف۔تر۔اس۔ مذ)(۱) وسله بندي۔خصوصاً هغه سړے وسله بند ، چې د تېزۍ په کار مړنے وي۔(۲) د اسونو تربيت کوونکے۔

**سلحشوري** :- (س+ل+ح+شو+ري) (ف تر۔مو) (۱) وسله بندي۔د سروسله بندۍ يا تېزۍ ويشتنه کښې مهارت۔(۲) د اسونو تربيه۔

**سلخ** :-(س+ل+خ) (ع۔اس۔ مذ) د سپوږمۍ د شپو اخري ورځ۔يعني هغه ورځ چې ماښام ئې په سوږمۍ نۀ ښکاري۔

د سړي د عمر کار راته ښکاره شۀ
کلـه بـدر کلـه سلخ کله هلال (خوشحال)

**سلرم** :-(س+ل+ر+م) (وـــ ځلرم)

**سلسبيل** :-(س+ل+س+بي+ل)(ع۔اس۔ مذ ج۔ونه) په جنت کښې د يوې ولې نوم دے۔

**سلسل** :-(س+ل+س+ل)(ع۔اس۔ مذ) زنځير۔

چې مئين د زلفينو په سلسل يم
خود په خود ولېونتوب وته مائل يم (خوشحال)

**سلسل بول** :- (س+ل+س+ل+بو+ل)(اس۔مذ)د يوې بيمارۍ نوم دے۔چې متيازې بې اختياره څاڅکے څاڅکے راځي۔

**سلسلتا** :-(س+ل+س+ل+تا)(ع۔تف) د سلسلې په طور۔په دغه لړ کښې۔

**سلسله** :-(س+ل+س+ل) (ع۔اس۔مو۔ج۔لې)(۱) زنځير۔(۲) لړۍ۔لړ۔(۳) ځولنه ببړۍ۔(د پښو)(۴) تعلق۔زمره۔

**ــــ جاري کېدل**:۔ څۀ کار مسلس په عمل کښې راتلل لکه: دا سلسله زمونږ د پلار نيکۀ راسې جاري ده۔

**ــــ جنباني**:-(ج+ن+با+ني) (عف تر۔اس۔مو) زنځير۔خوځونه۔کنايه:د څۀ کار يا مقصد د پاره د خبرې شورو ، (شروع) د څۀ خبرې يا مقصد د پاره متعلقه کس سره د خبرو اغاز۔

**ــــ جنباني کول**:۔ د څۀ کار يا مقصد د پاره متعلقه سړي سره خبره شورو کول۔

**ــــ چلېدل**:۔ د حالاتو يا واقعاتو ترتيب وار يا پرله پسې پېښېدل۔مثلاً دا سلسله د تېرې پېړۍ راسې چلېږي۔

**ــــ وار**:-(وا+ر) (عف۔صف) کړۍ په کړۍ۔ترتيب سره۔درجه په درجه۔يو ځيز پسې جخت بل ځيز۔

**سلطان** :- (س+ل+طا+ن) (ع۔اس۔ مذ۔ج۔ان) عرج۔سلاطين۔ (۱) بادشاه۔ باچا۔حکمرن۔ (۲) پخوا د ځينو بادشاهانو لقب ؤ۔چې هغوي به خپلو نومونو سره استعمالولو لکه سلطان محمود غزنوي۔ (۳) د پښتنو نارينۀ په نوم کښې هم استعمالېږي۔

**سلطان خان خېل** :- (س+ل+طا+ن+ن+خېل) (اس۔مع) د بره راڼي زويو څانګه ده۔چې اکوزي يوسفزي دي۔(استوږنه) ددې قبيلې ښاخونه دا دي۔ کاري خېل ، اسماعيل خېل ، داردي خېل ، امبراخېل ، او مردان خېل۔

**سلطان خېل** :- (س+ل+طا+ن+خېل) (اس مع) دا د غلزئ پاونډؤ د سليمان خېلو يو قبيله ده۔

ــــ (ددغه):- (اس مع) د بوجيا يوه څانګه ده چې (شنګي ، بهلول زي) محسود دي

ــــ (ددغه):۔ (اس مع) د سوران خيلو يوه څانګه ده۔چې (بابکري خېل ، سيا ، افريدي دي ، (فتح خېل بيا د سلطان خيلو يوه څانګه ده)۔

ــــ (ددغه):- د حمزه خيلو يوه څانګه۔چې حليم زئ مهمند دي۔(استوږنه۔ ګنداؤ يا ګنداب)

ــــ (ددغه):- د بازيد خيلو يوه څانګه۔چې (شموزئ ، خوازه زئ ، اکوزي) يوسفزي دي۔

ــــ (ددغه):۔ (اس مع) د حسن خېلو څانګه ده۔چې)=(مداخېل ، عيسیٰ زئ) يوسفزي دي۔(استوږګنه:مهابڼغې)

ــــ (ددغه):۔ (اس مع)د شېر ګلو يو ښاخ دے۔چې اکاخېل فريدي دي۔کوب خېل او شنکي خېل بيا د سلطان خېلو څانګې دي۔

ــــ (ددغه):- (اس مع) د هېبت خېلو يو ښاخ دے چې (لځئ ، بډئ ، زخاخېل) افريدي دي (په بل ځاے کښې پخې ليکلے شوے دے)۔

ــــ (ددغه):- (اس مع) د عبدل خېلو يوه څانګه ده۔چې (ارمزخېل ، سپاه) افريدي دي۔

**سلطان محمد خېل** :- (سلطان+م+ح+م+د+خېل)(اس مع)د مساره خېلو يوه څانګه ده چې (اشازئ ، الياس زئ) بنېروال دي۔(پښتنائۀ د محمد لفظ په خپلو نومونو کښې عموماً مامد کوي)۔

**سلطانه** :- (س+ل+طا+ن) (عپ۔اس۔مو)(۱) د سلطان تانيث دے۔ملکه۔ بادشاه بېګم۔(۲) زنانۀ نوم هم دے۔خو په پښتنو کښې سلطانۍ زيات استعمالېږي (چې د سلطانه مزيد تانيث دے)

**سلطانۍ** :- (س+ل+طا+ن+ئ) (اس مع) د شبي خېلو يوه څانګه ده۔چې علي زئ محسود دي۔احمد خېل بيا د سلطانيو څانګه ده۔

ــــ:۔ (س+ل+طا+ن+ئ)(اس۔مو۔ج) (۱) بادشاهي۔باچاهي۔حکومتونه ۔(۲) د پښتنو زنانۀ يو نعم۔

**سلطاني** :- (س+ل+طا+ني) (عپ۔اس۔مو۔ج۔نې)(۱) بادشاهي۔باچاهي۔ حکمراني۔سلطنت۔(۲) د سلطان سره متعلق۔شاهي۔باچاهي۔

ګدا تيوک په ارام خوري په امن خوب کا
مبتـــلا پـــه سل بلاو سلطاني ده (حافظ)

**ــــ ګواه**:۔ (ګ+وا+ه) (عپ تر۔اس۔ مذ۔ج۔ان) په مجرمانو کښې هغه يو

کس چې نه يوازې د خپل ګناه اعتراف وکړي ـ بلکې په خپلو نورو ملګرو باندې ګواهي ـ داسې ګواه په خطره معاف ګواه هم وايهٔ شي ـ ځکه چې دهٔ له سزا نهٔ ورکړے کېږي ـ

**سلطنت** :-(س+ل+ط+ن+ت) (ع ـ مذ ـ ج ـ ونه) سلطاني ـ بادشاهي ـ حکومت ـ مملکت ـ

**ـــــ جمهوري**:ـ (ج+م+هو+ري) داسې حکومت چې بادشاه نهٔ لري ـ او د روس خپل چوڼ کړي غړي د رائے د کثرت په بنياد د حکومت چلوي د عوامو (د اکثريت) حکومت ـ

**ـــــ شخصي**:ـ(ش+خ+صي) هغه حکومت چې د يو کس په واک اختيار کښې وي ـ دا يو کس عموماً خانداني باچا وي ـ

**سلف** :- (س+ل+ف) (ع ـ اس ج)(۱) تېر شوے ـ پخوانے ـ

په سلفو په پرهېزګارو
دين په دوي تازه کېدو (حافظ)

(۲) هغه خلق چې پخوا تېر شوي وي پخواني مشران ـ پلرونه نيکونه ـ (۳) تېر شوي وختونه ـ پخوانی زمانې ـ

**ـــــ وخلق**:ـ (خ+ل+ق) تېر شوي خلق او راتلونکي خلق پلرونه نيکونه او اولاد ـ

ـــــ:ـ (س+ل+ف) (انګ ـ اس) موټر واله ګاډو وغېره کښې هغه اله چې پخپله د ګاډي موټر يا مشين وچلوي (سټارټ لرګي) د سلف وران شکل دے ـ

**ـــــ وهل**:ـد موټر يا مشين د روانهٔ ولو (سټارټ کولو) د پاره چابي تاوول ـ

**سلفر** :- (س+ل+ف+ر) ګوګړ ـ ګندک ـ

**سلفورک ايسډ** :- (س+ل+فو+ر+ک+اي+س+ډ) د ګوګړ تېزاب ـ د ګندکو تېزاب

**سلفيټ** :- (س+ل+في+ټ) (انګ ـ اس ـ جم) د ګوګړو د تېزاب مالګه ـ

**سلک** :- (س+ل+ک) (انګ ـ اس ـ مذ) (۱) ريښم ـ (۲) د ريښمو نه جوړه يو کپړه ـ

ـــــ:ـ (س+ل+ک) (ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) تار ـ مزے يا هغه تار يا مزے چې پکښې څهٔ څيزونه پېرلې شوي وي ـ لړ لړۍ ـ امبل ـ لکه سلک مراورېد و هغه لړۍ چې پکښې مراورېد پېرلے شوے وي ـ

ـــــ:ـ(س+ل+ک) (ق ـ اس ـ مذ)لو شوي غنم چې لاسم پراتهٔ وي او غوبل وي نهٔ وي

**سلګه** :- (س+ل+ګ) (ق ـ اس ـ مو) د غنمو هغه ډکے چې وړے او دانې لا وريورې ننبتې وي ـ

**سلګی** :- (س/سُ+ل+ګ+ئ) (اس ـ مو) په ژړا کښې لنډه ات تېزه ساه راښکل سوګلی ـ (په عربی کښې ورته فراق او په اردو کښې ورته هچکي وائي) ـ

**ـــــ د ځنکدن**:ـ د مرګ په وخت لنډه لنډه ساه راښکل ـ

**ـــــ ورستی**:ـ (و+ر+س+ت+ئ) د مرګ د وخت سلګی ـ هغه اخري سلګی چې بني ادم د مرګ په وخت وهي ـ

**ـــــ ورستی سلګی ئې دي**:ـ مجازاً ـ مرکېدونکے دے ـ اخري وخت ئې دے ـ

**سلګېدل** :- (س+ل+ګې+د+ل) (مص) سلګی وهل ـ سلګی کول ـ

**سلم** :- (س+ل+م) (اس عدد ـ مذ ـ مو ـ سله)(۱) سلمه برخه ـ په سلو کښې يوه برخه يا څيز ـ (۲) په پره يا قطار يا شمېر کښې هغه کس وغېره چې يو کم سل (۹۹) کسان ترې وړاندې وي ـ

ـــــ:ـ (س+ل+م) (ق اس ـ مذ) خاندان ـ ټولے ـ طائفه ـ

ـــــ:ـ (سُ+ل+م)(ع ـ اس ـ مذ) پوړۍ ـ اندر پايه ـ

دا مکان چې تر اسمان زمکې تر مينځ دے
يـو خلـوت دے دا مـکان سلم د زړهٔ (رحمان)

**سلم** :- (س+ل+م) (ع ـ اس ـ مذ)د مېوے يا فصل وغېره د پخېدونه او زميدار يا د باغ مالک له پېشګي قيمت ورکول ـ

ـــــ:ـ(س+ل+م)(اس ـ مذ)فائده ـ ګټه ـ نفع ـ دا لفظ عموماً د "سود" لفظ سره يو ځاے راځي ـ لکه: "سودسلم" ـ

**سلمان** ﷺ :- (س+ل+ما+ن)(اس مع)حضرت سلمان فارسي د حضور ﷺ يو لوے صحابي چې د ايران د شاهي خاندانۀ ـ د يو يهودي غلام ـ حضور ﷺ په بيعه واخست او ازاد ئې کړو ـ د خندق په غزوه کښې د خندق کښنستلو رائے حضور پاک ﷺ له هم دهٔ ورکړې وه ـ (کښې وفات شو)

**سلمچي** :-(س+ل+م+چي)(اس ـ مو ـ ج ـ ئ ـ انې)چلمچي ـ لاس وينځونکے ـ

**سلمه** :- (س+ل+م)(اس عدد)د "سلم" تانيث دے ـ (وـــــ سلم)

**ـــــ سالګره**:ـد سلم کال يا دونه ـ د سلو کالو په تېرېدو يادګېرنه کول ـ سل کلنۍ ورځ مناوول ـ

**ـــــ کول**:ـ سل کليزه کول ـ د سلو کالو په تېرېدو يادګېرنه کول ـ

ـــــ:ـ(س+ل+م)(اس ـ مو ـ ج ـ ے) تعجب ـ حېرانتيا ـ

**ـــــ کول**:ـ تعجب کول ـ حېرانتيا ښکاره کول ـ

ـــــ:ـ (س+ل+م)(ف ـ امو ـ ج ـ ے) د سرو او سپينو زرو د تارو کار چې عموماً زنانهٔ پ جامو پر ګلونه او زنځيرونه جوړولے شي ـ د ماشومانو په ټوپو او پېزار هم د سلمې کار کولے شي ـ عموماً د ستاره لفظ ورسره يو ځاے راځي يعني د سلمې ستارې کار د وړې لوئې ستارې د سلمې سره يو ځاے ډېر خوند کوي ـ

**سلمې ستارې واله** :- (وا+ل) هغه دوکاندار چې د سلمې ستارې سامان خروي ـ

**سلندر** :- (س+ل+ن+ر)(وـــــ سلنډر)

**سلندے** :- (س+ل+ن+د+ے)(اس ـ مذ) د سرو وېښتو په مينځ کښې لار ـ

**سلنډر** :- (س+ل+ن+ډ+ر) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) استوانه ـ اوږد غونډ څيز ـ چې دواړه سرونه ئې هوار او مېنځ کښې په هر ځاے کښې ئې قطر يو هومره وي ـ (هندي ـ بېلن) (۲) د همدغه شکل يو اله چې په مشين پستن نومې بله اله حرکت کوي ـ

**سلنډه** :- (س+ل+ن+ډ) (اس ـ مو ـ ج ـ ې) شنډه ـ هغه ښځه چې بال بچ نهٔ راوړي

**سلنګۍ** :- (س+ل+ن+ګ+ئ) (ق اس ـ مو) هغه لوبه هندوانه چې دوه رنګه وي ـ

**سلو** :-(س+لو) د سله اضافي يو مجروري شکل دے ـ

**په ـــــ پسې**:ـ (پ تر) د حساب يو طريقه ـ يعني هر سلو کسانو يا څيزونو د پاره دومره مقدار يا تعداد وغېره ـ

**په ـــــ کښې(کې/کښي)**:ـ (پ تر/ف ـ في صد ـ د تعداد د نسبت وغېره د پاره استعمالېږي لکه: په سلو کښې شپېتهٔ هلکان پاس شوي وي ـ

**په ـــــ کښې يو**:ـ ډېر کم ـ په اړو کښې مالګه ـ

**د ـــــ د جرندو وتې سپږۍ**:ـ (جمعه صفت) سپږۍ په غنمو کښې وي ـ او چې غنم په جرنده (ژرنده) کښې اوړولے شي ـ نو دا سپږۍ هم ورسره دل شي ـ خو ځيني ترې ژوندۍ هم ووځي ـ مجازاً ډېر تجربه کار سړے چې ډېرې تودې سړے ئې ليدلې وي او ډېرو خطرو نه وتے وي ـ

**سلو** :- (س+لو) (انګ ـ ص) ورو (ټګ) ـ

**ـــــ مارچ**:ـ (ما+ر+چ) (انګ ـ اس ـ مذ) د فوځ د ټګ يو خاص طريقه چې په دې کښې ډېر ورو ورو قدم اخستے شي ـ ورو ټګ ـ

**سلوا** :- (س+ل+وا) (ع ـ اس ـ مو ـ ج ـ ګانې) مرز ـ بټېر ـ

**سلواخېل** :- (س+ل+وا+خېل) (اس مع) د ملاګان خېلو يوه څانګه ده ـ چې ملي زاد داوړ دي ـ

**سلواغه** :- (س+ل+وا+غ) (اس ـ مو ـ ج ـ غے)(۱) د ځرمنې بوقه ـ ډول ـ بوکه (۲)

هغه بوکه یا ډول چې د کاریز نه پرې ختې راوباسي (۳) د شمسي کال اتمه میاشت ـ دلو ـ

**سلوتري** :- (س+لو+ت+ري) (اس ـ مذ ـ ج ـ ان) د ډنګرو ډاکټر ـ د حیواناتو علاج کوونکے ـ

**ــــ خانه**:ـ(خا+ن) (اس ـ مو ـ ج ـ نے) (۱) هغه هسپتال چې پکښې د ډنګرو او حیواناتو علاج کولے شي ـ (۲) هغه ځاے چېرته چې نسل کشي د پاره نرځناور ساتلے شي ـ

**سلور/ څلور** :- (س+ل+و+ر) (انګ ـ اس جم) په انګریزۍ کښې سپینو زرو (چاندی) ته وائي ـ خو وروستو یو نوې دات (فلز) جوړ شو ـ چې اول اول به ئې ورته جرمن سلور وې ـ په پښتو کښې دغه دهات په سلور مشهور شو ـ اوس ورته ایلومینیم وائي ـ لوښې وغېره ترې جوړېږي ـ

**سلور/ ځ**:- (س+لو+ر) (او نور الفاظ) (وــــ څلور)

**ــــ بوټے**:- (س+لو+ر+بو+ټے) (وــــ څلورمېندې)

**ــــ مېندې**:- (مي+ن+دې) (وــــ څلور مېندې)

**سلور پلاره** :- (س+لو+ر+پ+لا+ر) (اس مع) د کوکي خېلو افریدو یو ښاخ دے ـ صحیح املا: څلور پلاره ـ

**ــــ (ددغه)** :- (اس مع) د شتي خېلو ځانګه ده ـ چې (دولي بیلګ لور ، لیم زئ) مهمند دي ـ (استوړنه: ګنداؤ یا ګنداب) (صحیح لیک "څلور" دے)

**سلورم** :- (س+لو+ر+م) (وــــ څلورم)

**سلوریزه** :- (س+لو+ري+ز) (وــــ څلوریزه)

**سلوک** :- (س+لو+ک) (ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) په لارې تلل ـ سفر کول ـ عموماً د تصوف په لاره یون کول ـ د الله تعالی قربت (نزدې والے) حاصلولو د پاره د صوفیانو په لارو چارو عمل کول ـ (۲) رویّه ـ عمل ـ

**ــــ کول**:ـ (عپ تر ـ مص) رویّه اختیارول ـ عمل اختیارول دا سلوک ښۀ او بد دواړه رنګه کېدے شي ـ خو چې دغه وصفي الفاظ (ښې بد وغېره) ورسره را نۀ شي ـ نو عموماً نېک سلوک ترې مراد وي ـ

**سلوک کول** :- (بد+ب+د) خراب ـ (خ+را+ب) چاسره بده او خرابه رویّه ساتل ـ بد رسول ـ نقصان یا تکلیف وغېره رسول ـ

**ــــ ښۀ**:ـ (خ/ش) نېک ـ (نے+ک) چاسره ښۀ رویّه ساتل ـ نېکي کول ـ مینه محبت ښۀ پېرزونه کول ـ

چې له دوسته له دښمنه ښه سلوک کا
د هغــــو سرېــــو ښه ژندګــــاني ده (خوشحال)

**سلوکور** :-(س+لو+کور) (اس مع) د سروه یوه ځانګه چې (ښاخېل ، کمالي ، حلیم زئ ، مهمند دي ـ

**سلوکي** :-(س+لو+کي) (عپ ـ اس ـ مو ـ ج ـ کۍ) سلوک رویّه ـ عمل عموماً "بد" سره یو ځاے راځي ـ بد سلوک کول بده رویّه ساتل ـ بد عمل کول (چاسره) بې عزته کول ـ

**سلول** :- (س+لو+ل) (فر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) یو ډېر وړوکے ژوندے جسم چې یوازې هم اوسي او نورو سلولو سره هم منظم کېدلو سر وجود ژوندے ساتي او لویه وي ـ سېل ـ

**ــــ**:ـ (س+ُل+ؤ+ل) (وــــ سولول)

**سلوم** :- (س+لو+م) (پ ـ صف) مشهور ـ نوم واله ـ ښکاره څرګند ـ

یــو پــه حسن بــل پــه دا چې عاشق وژني
په دا دوه توکه په درست جهان کښې سلوم دے (خوشحال)

**سلومېدل** :- (س+لو+مې+د+ل) (مص ـ مو) سلوم کېدل ـ شهرت موندل ـ څرګندېدل ـ ښکاره کېدل ـ

**سلونه** :-(س+لو+ن+ړ)(ه ـ صف ـ مو ـ ج ـ سلونې)نمکین ـ چې مالګې خوند لري ـ مالګین خوندور ـ مزه ناک ـ

**سلونې** :-(س+لو+ن+ړے) (وــــ سلونے)

**سلونے** :- (س+لو+نے)(ه ـ صف) نمکین ـ مالګین ـ خوندناک ـ

**سلوبخت** :- (س+لو+وې+خ+ت)(وــــ څلوبښت)

**سلوبختم** :- (س+ل+وې+خ+ت+م)(وــــ څلوبښتم)

**سلوبختي/څلوبښتي** :- (س+ل+وې+خ+تي)(وــــ څلوبښتي)

**سله** :- (س+ل) د څۀ له بدل شکل دے ـ څۀ سره د څۀ د پاره ـ په کوم غرض ـ (صحیح املا: څۀ له یا څله)

**ــــ**:ـ (س+ل) (اس ـ مو ـ ج ـ سلې) (۱) خښته (چې د ابادۍ د پاره پکارېږي) (۲) د خښتې په شان جوړ شوے څیز ـ

**ــــ**:ـ (س+ل)(اس ـ مو ـ ج سلې)د غنمو یا د اوربشو د ورېو لشه ـ

**ــــ**:ـ (س+ل)(ق)(اس ـ مو)لاسه ـ په پنځو حواسو کښې یو حس چې څۀ څیز سره په لګېدو او ادراک ئې وشي ـ

**سَله** :- (سَ+لَ)(اس ـ مو ـ ج ـ سلې)(۱) هغه غوا چې پېو کښې ئې غوړ زیات وي ـ (۲) د اوسپنې د ګرمېدو حالت ـ هغه اوسپنه چې په غرۀ کښې ئې جوش خوړلے وي ـ (ق)(۳) د اوسپنې سیخ ـ

**سلې** :- (س+ل+ی)(اس ـ مو)سولي ـ دار ـ

**په ــــ کول**:ـ په دار کول ـ پانسي کول ـ ځړول ـ

**ــــ**:ـ (س+ل+ئ) (اس ـ مو)د څۀ څیز ډېرے ـ توده ـ سلی ـ

**ــــ**:ـ (س+ل+ئ) (۱) وــــ سلے ـ (۲) سیخ ـ (ق)

**سلې ورخ** :-(س+ل+ئ+و+ر+خ)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)هغه حوض یا تالاؤ چې د شولو د اوبۀ خور د پاره پکښې اوبۀ جمع کولے شي ـ

**سلے** :-(س+لے)(اس ـ مذ ـ ج ـ سلي) د پستې ګوته چې تبرکاً په ګوته کولے شي ـ

**سلیبس** :- (س+لي+ب+س)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)خلاصه ـ انتخاب ـ فهرست

**سلے بل** :- (س+لے+ب+ل)(انګ ـ اس ـ ج ـ ونه) سېلاب ـ د یو لفظ هغه برخه چې په یوځل وئیلے کېدے شي د هجا جُز ـ

**سلیپر** :- (س+لي+پ+ر)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) یو قسم پېزار چې عموماً په کور دننه استعمالولے شي ـ پوندې ئې اوچتې نۀ وي ـ او د پوندو په شاته هم هیڅ قسم بندیز نۀ لري ـ عموماً زنانه ئې استعمالوي ـ خو په کور دننه ئې سړي هم استعمالوي ـ (۲) هغه د خاص اوږدالي ـ پلن والي او د اوچت والي لرګي چې د رېل د پاټلۍ د لاندې کښېښودے شي ـ (دا لفظ په انګریزۍ کښې سلیپر(س+ل+پ+پ+ر)وو ـ خو هندۍ او پښتو کښې ئې تلفظ بدل شو

**سلیپنګ سوټ** :- (س+لي+پ+ن+ګ+سو+ټ)(انګ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)هغه سپکې جامې (د شپې) د وادۀ کېدو په وخت اغوستے شي ـ

**سلیټ** :- (س+لي+ټ)(پ ـ صف)ډک ـ تر ژئیو پورې ډک ـ

**ــــ ډکول**:ـ ډکول ـ تر ژئیو (جیبو) پورې ډکول ـ

**ــــ کېدل**:ـ تر ژئیو پورې (جیبو) پورې ډکېدل ـ

**سلیبټ** :- (س+لیب+ټ)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) د کاڼي سپکه او هواره تختکۍ چې هلکان پرې سوالونه وباسي ـ یا نور څۀ کار پرې وکړي ـ او بیا ئې وران کړي عموماً د لرګي په چوکاټ کښې وي (۲) د سیمټو او باجرۍ وغېره نه په چت یا په فرش هواره تخته جوړول ـ پوخ فرش ـ

ــــ **اچول**:- په چت یا په زمکه د سیمټو او باجرې وغیره نه هواره تخته جوړول - پوخ فرش جوړول -

**سلیټي** :- (س+لې+ټي)(صف - مو)(۱) هغه څیز چې سلیټ سره تعلق لري - (۲) یو رنګ چې د سلیټ د کاڼي په رنګ وي - تورا بخن سین رنګ - (۳) د سلیټي پنسل مخفف -

ــــ **پنسل**:- د کاڼي یا کاڼي د چورے یا پوډرو نه جوړ شوے سلائي شان - چې سلیټ باندې پرې خط کولے شي - (د عامو پنسلو نه په شان په لرګي کښې هم جوړه شوے وي -

**سلیخ** :- (س+لې+خ) (اس - مذ - ج - ونه)(۱) سریښ - (۲) نښتے - (ق) - (۳) لچک - قوام - (ظفر) -

ــــ **ناک**:- (نا+ک)هغه څیز چې سلیخ لري - نښتونکے -

**سلیښت** :- (س+لې+خ+ت) (و ــــــ سلیښ)

**سلیز** :- (س+لې+ز)(اس عدد ، مذ - مو - سنیزه)چې په شمېر کښې سلو سره تعلق لري -

**سلیښ** :- (س+لې+خ)(اس - مذ - ج - ونه)نښتونکے ماده - سریښ - هغه ماده چې نور څیزونه پرې نښلولے یا پیوند کوي -

ــــ **ناک**:-هغه څیز چې نښتونکې ماده لري او بل څیز پورې نښلي سریښ واله چسپان کېدونکے - یا چسپان کوونکے -

ــــ **واله**:-(وا+ل)(و ـــ سلیښ ناک)

**سلیښت** :- (س+لې+خ/ش+ت)(و ـــ سلیښ)

**سلیقه** :- (س+لې+ق)(ع - اس - مو - ج - قې)(۱) تمیز د کار کول هنر - د کور د سنبالښت - پوهه - او شعور - (۲) لیاقت - طبیعت - خوئي -

ــــ **شعار**:- (ش+عا+ر) هغه سړے چې خپل کار ښهٔ په فکر سره او ښکلې طریقه کوي - باتمیزه - هوښیار - صفا سوتره - هنر مند -

ــــ **شعار**:- (ش+عا+ر) هغه ښځه چې د کور په کار او سنبالښت ډېره ښهٔ پوهېږي هوښیاره قابله - صفا ستره - سلیقې واله -

ــــ **لرل**:- په ښهٔ طور طریقه پوهېدل - هنر لرل -

پـارس شزے هـم زده سلیقـــه لـــرم د دواړو
پښتو شعر مې خوښ شهٔ هر څوک خپل ګڼي ښاغلي (خوشحال)

ــــ **منده**:-(م+ن+د)(پ صف - ج - مندې)هغه ښځه چې د کور په کار او سنبالښت ډېره ښهٔ پوهېږي ، باتمیزه - قابله -

**سلیکه** :- (س+لې+ک)(اس - مو - ج - ې)(۱) څریکه - پلوشه - شعاع (۲) څریکه د درد - درد -

**سلیم** :- (س+لې+م)(ع - صف)(۱) روغ - صحیح - سلامت - (۲) صفا زړے - نېک - (۳) صبرناک - زغم لرونکے - (۴) د پښتنو نارینهٔ یو نوم -

زړهٔ سلیم زبان حلیم دوه لاس کریم کړه
خـواري لـري له فراخه پېشاني کړه (حافظ)

ــــ **زړهٔ**:-(ز+ړ)صفا زړهٔ - د صفا او روغ زړهٔ خاوند - نرم طبیعته -

لاړ د ثواب واخلــه وبل لور ته قدم مه اخله
درومـــــه سلیم زړهٔ ، چې سلامت له وباله
(حافظ)

ــــ **طبع**:-(ط+ب+ع) هغه سړے چې روغ او صحیح کار کوي - صفا زړے - صبر ناک - چې نرم او زر نهٔ غصه کېدونکے - طبیعت لري -

ــــ **العقل**:- (مُ+ل+ع+ق+ل) د صحیح عقل خاوند - صحیح رائې لرونکے -

**سلیمان** :- (س+لې+ما+ن)(اس - مع - مذ)(۱) د یو مشهور پیغمبر نوم دے - چې د حضرت داؤد ﷺ زوے ؤ - د پلار نه پس په تخت کېناست - د بیت المقدس کار دهٔ سر ته رسولے ؤ - د خپلې هوښیارتیا - عقل او حکومت او د شان شوکت په وجه مشهور دے وائي چې د مرغو او ځناورو په ژبه هم پوهېدو - ددهٔ د وخت یوه مشهوره واقعه د صبا د ملک (یمن) ملکې ددهٔ دربار ته راتلل او ددهٔ محل او شان شوکت ته حېرانېدل دي - په قرآن پاک کښې ددې قیصه راغلې ده - په ځینو کتابونو کښې ددې ملکې نوم بلقیس لیکلے شوے دے -

کــــه حشمت د سلیمــان ؤ
چې سلطان د درست جهان ؤ (حافظ)

(۲) د پښتنو په نومونو کښې ډېر استعمالېږي - (۳) پښتونخوا کښې د یو مشهور غر نوم - د سلیمان غر - (۴) د پښتنو د ډېرو قبیلو د نوم برخه - لکه : سلیمان خېل -

**سلیمان خېل** :- (س+لې+ما+ن+خېل)(اس مع) د پلالي خېلو یوه څانګه ده - چې (تېنیائي ، تپي زاد) دوړ دي -

ــــ :- (اس مع)د تر غرهٔ ؤ یوه څانګه ده چې کاکړ دي -

ــــ **(ددغه)** :-(اس مع)د شیخ ملو یوه څانګه ده - چې قمبر خېل افریدي دي -

ــــ **(ددغه)** :-(اس - مع)د بهرام خان خېلو یوه څانګه - (بر رانیي زئ ، اکوزي) یوسفزي دي - (استوړنه - سوات)

ــــ **(ددغ)** :- (اس مع)د سدا خېلو یوه څانګه ده چې اسماعیل زئ ، اورک زئ دي -

ــــ **(ددغه)** :-(اس مع)دا د غلزئ پاونده ؤ یو زوره وره قبیله ده - د فلات غلترئ او د جلال اباد په مینځ کښې اباد دي - د دوي څانګې دا دي: (بابي خېل ، اکاخېل ، سلطان خېل ، ګلي خېل او محمود خېل) -

**سلیمان زئ** :- (س+لې+ما+ن+ز+ئ)(اس - مع)د محمد زئیو یوه څانګه ده - ایسوټ دي -

ــــ **(ددغه)** :-(اس - مع)د ناصرو یوه څانګه ده - چې غلزئ دي -

ــــ **(ددغه)** :- (اس - مع)د حسن زو یو څانګه ده - چې کبزئ ، د سنزر خېل ، کاکړ دي

ــــ **(ددغه)** :-اس - مع)د ګدنو د سالار قبیلے څانګه -

ــــ **(ددغه)** :- (اس - مع)د بابرو یوه څانګه ده - عثمان زئ بیا د سلیمان زیو یوه څانګه ده -

ــــ **(ددغه)** :-(اس - مع)د دوت خېلو یوه څانګه ده چې (حېدر خېل) مندو خېل دي -

**سلیمان محمد زئ** :- (س+لې+ما+ن+م+ح+م+د +ز+ئ)(اس - مع) داروزئ یو څانګه ده چې (احمد خېل ، حسن خېل) شیراني دي -

**سلیماني** :- (س+لې+ما+ني) (اس - مع)دوزي (یا روزي) خېلو یوه څانګه ده - چې (مهمت خېل ، اتمان خېل ، درویش خېل) وزیر دي - دا خلق خدره خېلو سره پوله په پوله پراتهٔ دي - ځکه ځنې وخت دا د خدره خېلو څانګه ګڼلے شي -

ــــ :- (سُ+لې+ما+ني)(عف - صف) حضرت سلیمانؑ سره تعلق یا نسبت لرونکے

ــــ **تعویذ**:- (ت+ع+وي+ذ)یو قسم افسانوي تعویذ چې ډېر اثر ناک ؤ - اوس هم د تعویذونو (پخوا به ځینو کم عقلو جادو سحر حضرت سلیمان ته منسوب کاؤهٔ - خو قرآن پاک ددې سخت تردید کړے دے) په کتابونو کښې داسې قسم خرافات موجود دي چې هېڅ اهلیت نهٔ لري -

ــــ **رانجهٔ**:- (را+ن+ج)یو افسانوي رانجهٔ - چې چا به پورې کړل - نو بیا به ورته پیریان دېوان او ښاپیرۍ هم ښکارېدل -

ــــ **مرغه**:- (اس - مذ - ج - ان)د یو مارغهٔ نوم دے - توردلے - رنجومکے - تک توکښې -

**سلیم خان کور** :- (س+لي+م+خا+ن+کور)(اس مع) د کوز یا خرپا والو یوه څانګه ده چې برهان خېل مهمند دي۔

**سلیمکئ** :- (س+لي+م+کئ) (اس۔مع)د خلي خېلو یو څانګه ده چې (برني شمن خېل ، سمن خېل) محسود دي۔

**ـــ (ددغه)** :۔(اس۔مع)د پنځه پلاریو یوه څانګه ده چې (عبدلّي ، ایمل خېل ، بهلوان زي) محسود دي۔

**سلیمونئ** :- (س+لي+مو+ن+ئ)(اس۔مع)د عبدل خېلو وړوکې څانګه ده چې (لنګرخېل ، خوئیداد خېل ، ګډي خېل ، منزئ ، علي زي) محسود دي۔ په بله شجره کښې د خوئیداد خېل نوم نشته۔

**سلیمه** :- (س+لي+م)(اس۔مو)(۱) د سلیم تانیث۔(وـــسلیم) (۲) د مسلمانانو ښځو یو نوم۔

**سلیمي خېل** :- (س+لي+مي+خېل)(اس مع)د جلال دینو یوه څانګه ده چې (شېخ بازید خېل ، ایسپ(یوسف) خېل ، زلي خېل ، بومئ ، نصرئ ، کالو خېل ، احمد زئ ، درویش خېل) وزیر دي۔

**ـــ (ددغه)** :۔(اس مع)د عمر خېلو یوه څانګه ده چې تتا بیټني دي۔

**ـــ (ددغه)** :۔(اس۔مع)د ډاچي خېلو یوه څانګه ده۔چې (پلي خېل ، منزئ ، غل زي) محسود دي۔

**سلیوټ** :-(س+ل+یو+ټ)(انګ۔اس۔مذ۔ج۔ونه) سلام۔فوجي سلام۔

**ـــ کول**:۔(انګ تر۔مص) سلام کول۔په فوجي انداز سلام۔

**سلیو لوز** :- (س+لي+یو+لو+ز)(انګ۔اس۔جم) یو قسم کیمیا وي ماده ده چې کاغذ او د ریا (مصنوعي ریښمو) په جوړولو کښې پکارېږي۔

**سم** :- ( س+م)(پ۔صف۔مذ۔مو۔سمه) (۱) نېغ۔(۲) درست صحیح۔(۳) نیے۔لکه سم لاس۔(۴) برابر۔

دا عالم مې هېڅ عالم سره سم نهٔ دے
کــه لیــدلي دي هـزار عــالمه ما (خوشحال)

**ـــ پرتوګ**:۔(پ+ر+تو+ګ)(ق اس مذ۔ج۔ونه) پتلون (نوے تلفظ دے)

**ـــ تورے**:۔(تو+رے)(ق۔اس۔مذ۔ج۔ي) نېغه۔توره۔کرچ۔

**ـــ جواب**:۔ (ج+وا+ب) (فپ تر۔اس۔مذ۔ج۔ونه)(۱) صحیح جواب۔درست جواب۔(۲) نېغ جواب۔سخت جواب۔د چا د خبرې دسې جواب چې هغه سرے غلے کړي۔

**ـــ دستي**:۔ (د+س+تي) (پ تر۔صف)مخې سره۔سم دلاسه۔فوراً هم دے (یا په دغه) وخت۔

**ـــ د سموني**:۔(س+مو+ني)(ف۔پ۔تر)ټول۔تماماً۔په جمع۔(څهٔ کار کول)۔

**ـــ دلاسه**:۔ (۱) فوراً۔سمدستي۔زر۔(۲) په موجوده وخت کښې چې څهٔ حاضر یا موجود وي۔

**ـــ دم**:۔(د+م) (۱) صحیح او درست۔بغېر د څهٔ نقص یا عیبه۔روغ جوړ۔(۲) فوراً۔مخې سره۔زر۔سمدستي۔لکه: سمدم روان شول۔

**ـــ رباب**:۔ (ر+با+ب)(اس تر۔مذ۔ج۔ونه)عود۔بربط۔(نوې اختراع)۔

**ـــ سدي**:۔ (س+دي)(ق)عقل سره سم۔په عقل برابر۔معقول۔

**ـــ شه**:۔درست شه۔صحیح شه۔مجازاً له دې بد کاره یا فساد او شرارت نه واوړه۔

**ـــ کښېښنودل**:۔(۱) برابر کښېښنودل۔صحیح کښېښنودل۔(۲) یو بل سره سم۔په مقابله کښې کښېښنودل۔

که ستا کوڅه جنت سره څوک سمه راتــه کېږدي
کوڅه بـه د وطن کړم که دا عیب دے هم وي دې (خوشحال)

**ـــ ګوټ**:۔ (ګو+ټ)(ق)

**ـــ ګټ**:۔(ګ+ټ) قائمه زاویه۔(نوې اخترام ده)

**ـــ لاس**:۔ (لا+س)نیے لاس۔دست راس۔

**ـــ لاسي**:۔ لا+سي)(پ تر۔تف)فوراً۔مخې سره۔سم د لاسه لکه: سم لاسي اقدام۔

**ـــ له سمني**:۔ (ل+س+م+ني)(ق۔پ تر)

**ـــ له کنډه**:۔(ل+ک+ن+ډ)(ق۔پ تر) ټول تماماً۔په جمع۔سره ګډ۔(کار کول)

**ـــ له لاسه**:۔ (ل+لا+س)(وـــ سم د لاسه)

**ـــ له ویلو**:۔ د حکم مطابق۔د وئیلو یا حکم سره سم۔

**ـــ سلمان**:۔ (ق)(صف۔مذ۔مو۔سمه مسلمانه)حنیف۔په دین کښې درست۔

**ـــ واله**:۔(وا+ل)(اس۔مذ) سمون۔برابرے۔همسري۔

**ـــ واله**:۔(وا+ل)تنظیم۔موافقت۔برابرے۔

**په ـــ ډول**:۔(ډو+ل)په سمه طریقه۔په صحیح طریقه۔په صحیح انداز۔

**سمه** :- (س+م) (ق۔صف)برابر۔راست۔

**سم** :- (س+م)(ع۔اس۔جم) زهر۔

**ـــ الفار**:۔ (مُ+ل+فا+ر)(عف تر۔جم) د منږکانو زهر۔مجازاً سنکیا۔(سپینه سنکیا)

**سم قاتل** :- (س+م+قا+ت+ل) (عف تر۔جم) قتل کوونکے۔زهر ، وژونکے زهر۔

**سم** :- (س+م)(ف۔اس۔مذ) د ستنې سورے۔چې پکښې تار اچوي۔(په پښتو کښې سُم هم وائي) سپم۔

**ـــ** :۔ (س+ُم)(ف۔اس۔مذ۔ج۔ونه)د اس ، خریا کچرې نوک۔(چې لکه د غوا مېښو په مینځ کښې چاودے نهٔ وي) کپئ۔

**سما** :- (س+ما)(اس۔مو) ورستي۔سمون۔سمونه۔سماؤ۔

**ـــ** :۔ (س+ما)(ع۔اس۔مو۔ج۔ګانې)(۱) اسمان۔هسک۔

د سما قمر به څو کړم
د عنبرا قمــره! راشه (خوشحال)

(۱) اوچتوالے۔لوړوالے۔(د فضا) بلندي۔(عربي جمع سماوات)۔
(۲) تقریر ګردش۔قسمت۔

د سماء سم نه کړ زما سهم هدف ته
پـــه ستم ئې خمیده کـړم ترکمانه (حافظ)

**سما ترا** :- (س+ما+ت+را) (وـــ سماټرا)

**سماټرا** :-(س+ما+ټ+را)(اس۔مع)د جنوب مشرقي ایشیا کښې د یوې جزیرې نوم۔

**سماج** :-(س+ما+ج)(ه۔اس۔مذ۔ج۔ونه)جماعت۔معاشره۔سوسائټي۔

**سماجت** :- (س+ما+ج+ت)(ع۔اس۔مذ) منت۔خوشامنده۔

**سماجي** :-(س+ما+جي)(ه۔صف) سماجي یعني معاشرې سره تعلق لرونکے معاشرتي۔سوشل۔

**سماچه** :- (س+ما+چ) (ف۔اس۔مو۔ج۔چے) د زنانو سینه بند۔تې بند۔انګیا۔

**سماحت** :- (س+ما+ح+ت)(ع۔اس۔مذ) (۱) ځوانمردي۔مړه توب۔بهادري۔(۲) اغماض۔سترګي (د چا په بدو) پټول۔بخښنه۔

**سماخ** :- (س+ما+خ) (اس۔مذ۔ج۔ونه)د غوږ سورے۔

**سماخچه** :-(س+ما+خ+چ)(وـــ سماچه)

**سمارټ** :- (س+ما+ر+ټ)(انګ۔صف۔مذ۔مو۔ه) چست۔ښکلے۔هوښیار۔زیرک چالاک۔

**سماري** :- (س+ما+ري) (اس۔مذ) د خټکو او بنګښو په مینځ کښې یو کلے

چې خلق ئې نۀ ختيک دي نۀ بنګښ داسې سړي ته يا په داسې موقع وئيلے شي چې د چا اصل نسل نۀ وي ـ سلومر لکه:فلانے سماري دے ـ

**سماسه** :- (س+ما+س) (اس ـ مو ـ ج ـ سماسې) سمبوسه ـ سموسه ـ

**سماع** :- (س+ما+ع) (ع ـ اس ـ مو) (۱) اورېدل ـ اصطلاح کښې سندرې او موسيقي اورېدل ـ

د بورجل غمجن په رقص
د پائلــــو پــــه سماع (خوشحال)

(۲) د صوفيانو په اصطلاح کښې ـ "حال" چې په صوفيانه سندرو او موسيقي په چا راشي ـ (اصلاً ـ سماع (د سين زور سره) سندره او رقص وسرور ته وائي او سِماع(د سين زير سره) د راګ سندره او د موسيقۍ اورېدلو ته وائي ـ

**ـــ کول**:- اورېدل ـ نغوتل ـ

په هغو غوږونو چې ذکر د خداے اوري
بيا سمـاع په هغو غوږ و د رباب کړي (رحمان)

**په ـــ سره**:- د سندرو او موسيقۍ په اواز اورېدو ـ

**سماعت** :- (س+ما+ع+ت)(ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) د اورېدو قوت ـ شنوائي (۲) اورېدنه ـ اورېدل ـ

**ـــ قابل**:- (قا+ب+ل) (عف ـ تر) د اورېدو وړ ـ د هغو مقدمو په حقله وئيلے شي چې مجسټرېټ يا حاکم ته پکښې د کار وائي کولو اختيار وي ـ

**سماعي** :- (س+ما+عي) (ع ـ صف) هغه چې اورېدو سره تعلق لري ـ چې اورېدو ته اړوي ـ

**ـــ شهادت**:- (ش+ها+د+ت) (ع تر) هغه شهادت (ګواهي) چې اورېدو سره تعلق لري ـ و بل چانه ئې اورېدلے وي ـ د خپلو سترګو ليدلے نۀ وي ـ

**سماغ** :- (س+ما+غ) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د يوې ونې نوم دے ـ مېرې ته ئې هم سماغ وائي ـ چې په خونه تروه وي ـ (دا د سماک يا سحاق بدل شکل دے)

**سماک** :- (س+ما+ک) (ع ـ اس جم) په اسمان کښې د ستورو د يو جومپک نوم دے ـ

**سمال** :- (س+ما+ل) (انګ ـ صف) وړوکے ـ

**ـــ انډسټري**:- (ا+ن+ډ+س+ټ+ري) (انګ ـ اس ـ مو ـ ج ـ ونه)وړې کارخانې ـ

**سمالي لېند** :- (س+ما+لي+لے+ن+د)

**سمالي لينډ** :- (لے+ن+ډ) د يو افريقې د يو ملک نوم ـ سمالي ـ

**سمانه** :- (وـــ سامانه)

**سماؤ** :- (س+ما+ؤ)(اس ـ مذ ـ ج ـ نه)(۱) درستي ـ سمونه ـ سما(۲) انصاف ـ

**ـــ کول**:-(مص)درستي کول ـ سمون راوستل ـ درستول ـ سمول ـ انصاف کول

**سماوات** :- (س+ما+وا+ت) (پ ـ مذ)(۱) سپېرۀ ـ منحوس ـ (۲) تباه وبرباد ـ بدپرخے ـ دا لفظ "ميرات" سپېرۀ سره يو ځاے راځي ـ او په معنٰى کښې ئې شدت پيدا کوي ـ يعني ميرات ـ سموات ـ سپرۀ سماوات ـ

**ـــ**:- (س+م+وا+ت)(وـــ سماوار)

**سماوار** :- (س+ما+وا+ر)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د ابو د ګرمولو د پاره يو خاص لوښے چې په مينځ کښې ئې په يوه لوېه نلکه کښې اور يا سکارۀ بلولے شي ـ

**ـــ د چايو**:- د اوبو ګرمولو هغه سماوار (وګوره سماوار) چې د زېړو يا د تانبې يا د زنګ نه اخيسـتونکي فولاد نه جوړه شوې وي ـ عموماً د چايو په دوکانونو کښې استعمالېږي ـ

**سماور** :- (س+ما+و+ر) د سماوار مخفف دے نورو الفاظو سره د سابقې په طور راځي ـ

**ـــ چي**:-(رق) (چي) په سماوار کار کوونکے ـ چائې واله ـ

**ـــ والا**:- (وا+ل) سماوار واله ـ هغه کس چې د سماوار متعلق کار کوي ـ چائې واله ـ

**سماوي** :- (س+ما+وي) (ع ـ صف) اسمان سره تعلق لرونکے ـ اسمان ته منسوب شوے ـ اسماني ـ غيبي ـ

**سمباتې** :- (س+م+با+تې) (اس ـ مذ ـ ج ـ تې)د کناټي ځاے ـ مطلق د ناستې ځاے ـ

**سمباخ** :- (س+م+با+خ)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د کونې سورے ـ د کونې سر ـ سُپره ، (رق) سر سپره د سوپرې سر ـ سمبې ـ

**سمبال** :- (س+م+با+ل)(پ ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه) (۱) په حفاظت کښې ـ محفوظ ـ (۲) جوړ اراسته ـ خائسته کړے ـ (۳) په وسله پور ـ

**سمبالک** :- (س/سي+م+با+ل+ک) (انګت ـ صف) علامتي ـ

**سمبالول** :- (س+م+با+ل+ؤ+ل)(مص)په حفاظت کښې کښېښـودل ـ محفـوظ کول

**ـــ ځان**:- (د) زا+ن)(۱) خپل ځان جوړول ـ په ځان ارائش کول ـ (۲) د ځان په حفاظت انتظام کول ـ

**سمبالونګ** :- (س+م+با+ل+ؤ+ن+ګ) (وـــ سمبالونه)

**سمبالونه** :- (س+م+با+ل+ؤ+ن) (حمص) د حفاظت کـار ـ محفـوظ کونـه يـا محفوظ ساتنه ـ

**سمبالونکے** :- (س+م+با+ل+وو+ن+کے) (اس ـ فا ـ ج ـ کي) په حفاظت کښې کښېښودونکے ـ محفوظ ساتونکے ـ

**سمبالے** :-(س+م+با+لے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ي)(۱) محفـوظ کونـه ـ پـه حفاظـت کښېښودنه ـ په حفاظت کښې ساتنه ـ (۲) جوړه ونه ـ اراسته کونه ـ

**سمبته** :- (س+م+ب+ټ)(اس ـ مو ـ ج ـ ټې) کلکې او سختې شولې ـ غونډې وريژې ـ

**سمبل** :- (س/س+م+ب+ل) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)نښان ـ علامت ـ

**سمبورے** :-(س+م+بو+رے) (اس ـ مذ ـ ج ـ ي) سورے ـ کشادګي ـ

**سمبوسه** :- (س+م+بو+س)(وـــ سموسه)

**سمبوغګه** :-(س+م+بو+غ+ګ) (ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ ې) تنګ او وړوکے لوښے ـ

**سمبول** :- (س/سي+م+بو+ل) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) سمبل ـ علامت ـ نشان

**سمبې** :- (س+م+ب+ئ) (اس ـ مو) د کونې سورے ، د کونې سر ، د سپرې سر ـ (رق) ـ سمباخ ـ

**سمبے** :- (س+م+بے) (اس ـ مذ ـ ج ـ ي) سومبه ـ هغه اله چې د ټوال وغېره پرې سورے کوي ـ

**سمپتي** :- (س+م+پ+تي) (انګ ـ اس ـ مو) همدردي ـ رحم ـ دلسوزي ـ

**سمپټم** :- (س+م+(پ)+ټ+م) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) علامت ـ اثار ـ (د مرض) ـ

**سمپوزيم** :- (س+م+پو+زي+ئ+م) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) د خوشحالۍ او د نشاط محفل ـ (۲) محفل ـ مجلس ـ

**سمت** :- (س+م+ت) (ع ـ اس ظ) طرف ـ لور ـ لورے ـ (ځنې خلق د سَ زېر سر هم وائي خو اصلاً په عربۍ کښې د سِمت بلـه معنٰى ده ـ يعني نښان ـ داغ ـ علامت) ـ

**ـــ جنوبي**:- (جُ+نو+بي) (اس ـ مع) د افغانستان د يو ولايت نوم ـ

**ـــ شمالي**:- (اس ـ مع) د افغانستان د يو ولايت نوم چې د کابل قطب طرف دے ـ

ــــ مشرقي:-(م+ش+ر+قي)(اس ـ مع)د افغانستان د يو ولايت نوم چې د كابل نمر خاتۀ طرف ته دے ـ

ــــ:- (س+م+ت) (ق ـ صف) ډېر ـ كافي مقدار ـ

**سمتره** :-(س+م+ت+ر) (وـــ ستره)

**سمټ** :- (س+م+ټ) (صف ـ مذ مو ـ ۀ)

رقيبـــان بـــه واړه وبـاسم له تېغه
كه مصري خدائې د خبر نه لري سمته (عبدالعظيم)

ــــ:-(س/سي+م+ټ)(انگ ـ اس ـ جم)د كانو څخه جوړ كړے هغه نرې پوډر چې د مصالې په طور په عمارت سازي كښې پكاريږي ـ سمنټ سيمنټ ـ

ــــ **كول**:- په سميټو سره يو بل سره كلك نښلول ـ

**سمټر** :- (س+م+ټ+ر)(ق ـ اس ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ۀ) غټ ـ ځورب ـ ډېر زيات غټ ـ

**سمټري** :- (س+م+ټ+ري)(انگ ـ اس ـ مو) تناسب ـ د څۀ څيز د دواړو اړخونو په خپله كښې يو شان والے ـ

**سمټه**:- (س+م+ټ) (ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ ې) پگ ـ لويه پگړې ـ دستار

ــــ:(س+م+ټ) (صف ـ مو ـ ج ـ ټے) پڅه ـ كنده ـ مخ اوړېدلے ـ (وـــ سمټ)

**سمټے** :- (س+م+ټے) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ي) د يوې لوبې نوم ـ

**سمچ** :- (س+م+چ)

**سمچه** :- (س+م+چَ) (ق اس ـ مذ)ته خانه ـ (په فارسي كښې ئې معنٰى بدله شوې ده پښتو كښې ئې اصل معنٰى باقي پاتې ده ـ وـــ سمڅ)

**سمڅ** :- (س+م+(ت)+س) (اس ـ مو ـ ج ـ ې) غاره ـ د غرۀ ـ قدرتي غار ـ

**سمڅه** :- (س+م+(ت)+س) د سمڅ تصغير دے ـ وړوكے قدرتي غار ـ

**سمڅو** :- (س+م+(ت)+سو)د سمڅے (جمع) اضافي يا مجروري شكل) ـ (د اوسېدونكي)

**سمخ** :- (س+م+خ)(پ ـ صف)يخ ـ سوړ ـ دا لفظ عموماً "سوړ" سره يو ځاے راځي او د سوړ په معنٰى كښې زور او تاكيد پيدا كوي ـ سوړ سمخ ـ

ــــ **سترگې**:- (س+ت+ر+گې)(صف تر) سپين سترگے ـ بې حيا ـ بد لحاظه ـ

**سمخړے** :- (س+م+خ+ړے)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ي)هغه تنبو چې د زړو چړانگو نه جوړ شوے وي ـ

**سمر** :- (س+م+ر)(ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)قصه ـ افسانه ـ

ستا پـــه راز بـــه ژبه هم نكړم خبره
تل تر ژبې رسېدلے راز، سمر دے (خوشحال)

**سمر** :- (سَ+مَ+ر)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د جولاگانو يوه اله ـ

ــــ:- (س+م+ز)(انگ ـ اس ـ مذ)(۱) اوړے ـ د گرمۍ موسم ـ (۲) د يـــــو قسم كپړې نوم دے چې كوټونه او سوټونه ترې جوړولے شي ـ

**سمرقند** :- (س+م+ر+ق+ن+د)

**سمركند** :- (س+م+ر+ك+ن+د)(اس ـ مع) د تركستان يو مشهور ښار ـ وائي چې دا سمر نومې يو پخواني باچا اباد كړے ؤ ـ "كند" په تركۍ كښې ښار ته وائي (كندے پښتو كښې هم دغې تر نزدې معنٰى لري) د امير تېمور او د ځنو نورو مسلمانانو باچاهانو دارالسلطنت پاتې شوے دے ـ اس د روس سوشلستي حكومت شامل دے پخوا ئې سبوان ډېر مشهور وو ـ

**سمرنا** :- (س+م+ر+نا)(اس ـ مع) په تركي (ايشيائے كوچك) كښې يو مشهور ښار اوس ورته ازمير وائي ـ

**سمري** :- (س+م+ري) (انگ ـ اس ـ مو ـ ج ـ گانې) خلاصـــه ـ مختصـــر ، مجمل بيان ـ لنډيز ـ

**سمريز** :- (س+م+ري+ز)(اس ـ ص)سجع لرونكے ـ قافيه دار كلام ـ

**سمريزول** :- (س+م+ري+ز+ؤ+ل)(مص ـ ت)مسجع كول ـ د نثر عبارت د جملو اخر ته يو شان حرفونو واله لفظونه استعماله ول ـ

**سمزئ** :- (س+م+ ز+ ئ)(اس ـ مع) د علي زو يوه څانگه ده چې تور ترين دي ـ

**سمسار** :- (س+م+سا+ر)(اس ـ مو ـ ج ـ رې) سمســـره ـ ســانړه ـ ځمځـــره ـ شلانړه ـ سوسار ـ

**سمسام** :-(س+م+سا+م)(ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)توره شمشېر ـ

**سمست** :- (س+م+س+ت)(اس ـ مو ـ ج ـ ې) سمڅ ـ په غرۀ كښې هغه غار چې قدرتي جوړ شوے وي ـ

**سمستر** :- (س+م+س+ت+ر)(انگ ـ اس ـ ج ـ ونه)د تعليم شپږ مياشتيز يا درې مياشتيز انتظام يعني (تعليم نصاب په دريو دريو) (يا زيات وكم) مياشتو باندې وېشلے شي چې ورته سمستر وائي د هر سمستر په اخر كښې ددغې سمستر د نصاب امتحان اخستے شي ـ

**سمسره** :- (س+م+س+ر)(اس ـ مو ـ ج ـ رے) ځمځره ـ سانړه ـ شلانړه ـ

**سمسم** :- (س+م+س+م)(ء ـ اس ـ مذ) كونځله ـل مشهوره غله ده (د علي بابا او څلوېښت غلونو په قصه كښې دا الفاظ راغلي دے) ـ

نيم سمسم به تا سم زيات درله درنۀ كا
په سابق قسمت صابر شه نېک برهانه (حافظ)

**سمسود** :- (س+م+سو+د)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)

**سمسور** :-(س+م+سو+ر)(پ ـ صف مذ ـ مو ـ ۀ) غوړېدلے ـ تر وتازه ـ شگفته ـ

باغ د گلو به سمسور وي مونږ به نۀ يو
د بلبلو بـه پرې شور وي مونږ به نۀ يو

ــــ **تيا**:- (ت+يا)

ــــ **توب**:- (تو+ب)(وـــ سمسوروالے)

ــــ **والے**:- (وا+لے)(پ تر)(۱) غوړېدنه ـ تر وتازگي ـ شگفتگي ـ (۲) ښۀ حالت ـ ښۀ ځواني ـ

**سمسورول** :- (س+م+سو+ر+و+ل)(مص)(۱) د گلونو يا د فصل وغيره غوړول شگفته كول ـ (۲)د (فصل وغيره) پخېدو ته رسول ـ (۳) ځوانۍ ته رسول

**سمسورونگ** :- (س+م+سو+ر+و+ن+گ) (وـــ سمسورونه)

**سمسورونه** :- (س+م+سو+ر+و+ن)(حمص)(۱) غوړونه (د گلونو باغ وغيره) تر وتازه كونه ـ زوغنۇنه ـ (۲) ځوانۍ ته رسونه ـ

**سمسوروونكے** :- (س+م+سو+ر+وو+ن+كے)(اس فا ـ مذ ـ ج ـ كي)(۱) د گلونو يا باغ وغيره غوړوونكے تر و تازه كوونكے ـ شگفته كوونكے ـ (۲) فصل په ځوانۍ كښې راوستونكے ـ

**سمسورے** :-(س+م+سو+رے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ي)نظير ـ برابر ـ سيال ـ همسر ـ

**سمسورېدل** :- (س+م+سو+رې+د+ل)(مص)(۱) د فصل پخېدل ـ (۲) ځوانۍ ته رسېدل ـ

**سمسورېدنگ** :- (س+م+سو+رې+د+ن+گ)(وـــ سمسورېدنه)

**سمسورېدنه** :- (س+م+سو+رې+د+ن)(حمص)(۱) (د گلونو يا باغ) غوړېدنه ، شگفته كېدنه ، تر و تازه كېدنه ـ(۲) د فصل پخېدنه ـ(۳) ځوانۍ ته رسېدنه (۴) ښېرازه كېدنه ـ ابادېدنه ـ

**سمسورېدونكے** :- (س+م+سو+رې+دو+ن+كے)(مف ـ مذ ـ ج :سمسورېدونكي) غوړېدونكے ـ تر و تازه كېدونكے ـ شگفته كېدونكے ـ ښېرازه بېدونكے ـ ابادېدونكے ـ

**سمسه** :- (س+م+س) (وـــ ځمڅه)

**سمسی** :- (س+م+س+ئ) (و ـــ څمڅی)

**سمسیاره** :-(س+م+س+یا+ر) (اس ـ مو ـ ج ـ ري) سمسره ـ څمڅره ـ

**سمښت** :- (س+م+خ/ش+ت)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) سمونه ـ برابرونه ـ (۲) سمے ـ برابرے ـ

ـــ :- (س+م+خ/ش+ت)(ق اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)بغض ـ حسد ـ کینه ـ

**سمع** :- (س+م+ع)(ع ـ اس مو ـ ج ـ ے)(۱) اورېدونه ـ شنوائي ـ (۲) غوږ ـ

ـــ **خراشي**:-(خ+را+شي)(عف تر ـ مو)غوږ ګرونه ـ یا زخمي کونه ـ کنایه: ډېرې خبرې کول ـ ناګواې خبرې کول ـ بک بک کول ـ غوږ ونه خوړل ـ

ـــ **خراشي کول**:-ډېرې خبرې کول ـ په ناګواره خبرو د چا غوږونه خوړل ـ

ـــ **نېول**:-غوږ نېول ـ اورېدل ـ

چې رېبار ئې د اشنا په رښتیا راوړ
د رېبار ګفتار ته سمع وبصر نیسم (حافظ)

**سمفني** :-(س+م+ف+ني)(انګ ـ اس ـ مو)هم اهنګي ـ هم اوازي ـ د سُر یو شان والے ـ ترانه ـ

**سمک** :- (س+م+ک) (پ ـ صف) ساده ـ روغ ـ دا لفظ "سم" سره یو ځاے راځي او د "سم" په معنیٰ کښې زور او تاکید پیدا کوي ـ لکه: فلانے یو سم سمک سړے دے یعني هېڅ چل ول ات ټګي چالاکي پکښې نشته

ـــ :- (س+م+ک) (ع ـ اس ـ مذ)(۱) کب ـ مهے ـ (۲) د یـوې پخـوانۍ (غلطې) عقیدې مطابق سمک هغه کب دے ـ چې په هغۀ باندې غوئي ولاړ دے او دا زمکه ددغې غوئي په ښکر پرته ده ـ ځکه د سمک نه مراد د اسمان په مقابله کښې ډېر لاندې ګڼلے شي ـ

د ـــ **نه تر سما پورې**:- د ټولو نه لاندې درجې نه تر اوچت اسمانه پورې ـ

**سمکلے** :- (س+م+ک+لے) (اس ـ مذ ـ ج ـ لي) هغه پړے چې اودلو د کار نه زیاتي شي او دلے کېږي ـ او د ګوتې نه چاپېره کړے شي ـ (ر ـ ق)

**سمکوري** :-(س+م+کو+ري) (اس ـ مع)دالاني والو یوه قبیله ـ

**سمله خېل** :- (س+م+ل+خېل)(اس ـ مع)د دیشي والو یوه قبیله ـ (استوړنه ـ تور غر)

**سمن** :- (س+م+ن) (ف ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د چنبیلۍ ګل د چانبېل ګل ـ یاسمین ـ

ـــ **زار**:-(زا+ر)(ف تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)هغه ځاے چې پکښې بې کچه ډېر د چانبېل ګلونه غوړېدلي وي ـ

ـــ **زېړ**:-(ز+ې+ړ)(فپ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د چنبیلي د ګل هغه قسم چې زېړ رنګ لري ـ زېړ رنګې چانبېل خوشبوي نۀ لري ـ سپین ډېر خوشبوینه وي

ـــ :- (س+م+ن)(اس ـ سابقه) د سمن یعني د چانبېل د ګل په شان یعني تک سپین ـ نورو الفاظو سره په طور د سابقې راځي ـ لکه: سمن اندام ـ سمن بر ـ سمن عذار وغېره ـ چې مقصد تـرې د معشـوقې د سپین والـي او ښائست صفت دے ـ

ـــ :- (س+م+ن)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)په عدالت کښې د حاضرېدلو حکم ـ

ـــ **جاري کول**:- د عدالت د طرفه د ملزم (وغېره) د حاضرېدلو حکم جاري کول ـ

ـــ **راتلل چا پسې**:- د عدالت د طرفه په عدالت کښې د حاضرېدلو حکم راتلل ـ

**سمنټ** :- (س+/سي+م+ن+ټ) (و ـــ سیمنټ)

ـــ **سازي**:- د سیمنټو جوړونه ـ په کارخانه کښې د سیمنټو یارونه ـ

**سمند** :- (س+م+ن+د)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د زېړ رنګ اس ـ مطلق اس ـ

ـــ :- (س+م+ن+د)(اس ـ مع) د درګ زئ یوه څانګه ده ـ چې لوڼي دي ـ

**سمندر** :- (س+م+ن+د+ر)(ه ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) د ژورو (جورو) ابو هغه لویه قطعه چې په سوونو زرګونو میله اوږده او پلنه وي ـ (۲) د سمندر د لوې والي او ژور (جور) والي په مناسب د هغه سړي په صفت وئیلے شي ـ څوک چې په زغمل ، علم ، سخاوت وغېره کښې د سمندر په شان لوې زړۀ او حوصله وغېره لري ـ

ـــ :- (س+م+ن+د+ر) (ف ـ اس ـ مذ) وائي چې په اتشکدو کښې چې پکښې تر عمرونو عمرونو اور بلېږي، د منړک په شان یو ځناور پیدا کېږي او په اور کښې اوسي اور نه بهر ژوندے نۀ پاتې کېږي (دا لفظ په اصل کښې "سام+اندر" دے "سام" اور ته وائي او "اندر" په فارسۍ کښې دننه ته وائي) ـ سمندل ، سمندور ، سمندول او سمندوت ددغې لفظ بدل شکلونه دي ـ د پښتو په شاعرۍ کښې "سمندر" استعمال شوے دے ـ

د بلبلو وچمن وتـه پرواز وي
سمندر کا مدام اور ته اهنګ (رحمان)

**سمندوز** :- (س+م+ن+د+رو+ز)(اس ـ مذ)یو قسم رېښمن ټوکے ـ شمند روز ـ قناویز ـ

**سمندري** :- (س+م+ن+د+ري) (ف ـ صف) (۱) سمندر سره تعلق لرونکے ـ بحري (۲) سمندر کښې پیدا کېدونکے ـ بحري ـ

ـــ **جنګ**:- (ج+ن+ګ) (فپ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه جنګ چې په سمندر کښې د سمندري (جنګي) جهازونو او کشتو وغېره په ذریعه کولے شي ـ بحري جنګ ـ

ـــ **جهاز**:- (جي+یا+ز) (فپ تر ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه جهاز چې په سمندر کښې چلېږي د اوبو جهاز ـ

ـــ **ځناور**:-(د)ز+نا+ؤ+ر)(فپ ـ تر ـ اس) هغه ځناور چې په سمندر کښې اوسي ـ

ـــ **سفر**:- (س+ف+ر) (فپ تر ـ اسم ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه سفر چې د اوبو د جهاز په ذریعه په سمندر کښې کولے شي ـ

**سمندریز** :- (س+م+ن+د+ري+ز) (اس صف ـ مذ ـ مو ـ ه) سمندر سره تعلق لرونکے د سمندر سمندري ـ

ـــ **څلے**:-(ت) س+لے) (اس ـ مذ ـ ج ـ څلي) په سمندر کښې دننه هغه لوټې ګټان چې جهازونه ورسره ډغرې وهي ـ او مات یا نقصاني شي ـ یا پرې ونښلي

ـــ **منار**:- (م+نا+ر) هغه مناره چې په سمندر کښې جوړه شوې وي ـ بره سر کښې ئې رڼا بلېږي چې سمندري جهازونه په دې رڼا کښې خپله لار سموي او د سمندري څلو ټرو نه ځان بچ کړي ـ لائټ هاؤس د رڼا مینار ـ

**سمندے** :- (س+م+ن+د+ے) (اس ـ مذ ـ ج ـ ي)یو قسم زېړ رنګے منړک(مږه) ـ

ـــ **ډیک**:- (ډي+ک)(ق اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)یوه وړه ځنګلي مرغۍ ـ

**سمنړول** :- (س+م+ن+ړو+ل) (ق ـ اس ـ مذ)(۱) شوم ګل ـ شین ګل ـ (۲) یو قسم ځنګلي علف(ګیاه) چې وبخ ئې خلق هم خوري ـ

**سمنک** :-(س+م+ن+ک)(رق ـ اس ـ مذ) یو قسم حلوا ده چې د اوړۀ کړو غنمو نه (یـا شـنو غنمو) (عموماً پـه ژمـي کښـې) جـوړولے شـي ـ سمنو سماتک او سمانګ هم ورته وائي ـ

**سمنګان** :- (س+م+ن+ګا+ن) (اس ـ مع) د یو ولایت (صوبې) نوم ـ

**سمنګلي** :- (س+مو+ن+ګ+لي) (اس ـ مع) یوه کاسي یا کانسي قبیله ده ـ ددې قبیلې څانګې دادي ـ پټوزئ، چندوزئ او شاهي زئ ـ

**سمنګے** :- (س+م+ن+ګے) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ي) دسترخوان ـ

**سمنو** :- (س+م+نو)(و ـــ سمنګ)

**سمنه** :- ( س+م+ن) (اس ـ مو ـ ج ـ نے)تنظیم ـ موافقت ـ

ـــ **کول**:- (مص تر) تنظیم ساتل ـ تنظیم کول ـ موافقت کول ـ نظم و ضبط ساتل

**سمنه خېل** :- (س+م+ن+خېـل) (اس ـ مـع) د غلجي خېلو يو څانگه ده ـ چې (امبر خېل مټ خان خېل ، قمبر خېل) افريدي دي ـ

**سمو** :- (س+مو) د"سم" (جمع) اضافي يا مجروري شکل دے ـ

**په ــــ گوتو غوړي نۀ ووځي**:- په ژمي کښې کلک شوي غـوړي د رايستلو د پـاره گوتې کلکول او کږول غواړي ـ مجازاً بغېر د سختي او ژور زياتي نه (کار) نۀ کېږي ـ

**سموخ** :- (س+مو+(ت) س)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(وــــ سمڅ)

**سمور** :-(س+مو+ر) (اس ـ مذ ـ ج ـ ان) تورلمے ـ د لومبړي نه لږ ورکوټے څناور دے چې د پشم داري ښکلې څرمنې ئې پوستينونه او دستانې جوړولے شي ـ چې ډېر قيمت لري ـ

**سموزي** :- (س+مو+ز+ئ)(اس ـ مع) د شېخانو يا ښاخ دے چې د اورک زو يـو همسايه قبيله ده ـ علي خېل ودوئ يوه څانگه ده ـ

**سموسه** :- (س+مـو+س)(اس ـ مـو ـ ج ـ سموسې) سمبوسه ، سماسه هم ورتـه وائي دا د مېدې په چپاتي کښې قيمه الوگان يو نل څۀ ترسکون ځيـز ونغښتے شي او بيا پـه غـوړو کښې ورتـاوو لے شي ـ عموماً د درې گوټيز جوړولے شي ـ

**سموښت** :-(س+مو+خ/ش+ت) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) لار ښودنه ـ نصيحت

**سمول** :- (س+م+ؤ+ل) (مص)درستول ـ برابرول ـ نېغـول ـ کـگ لـېچ استـل ـ کړليچ اباسل ـ

د اشنا د ښيلــتانـــۀ هسې لمبې دي

که د صبر سيند پر سم کړم نۀ سرېږي (حافظ)

**ــــ لار**:-(لا+ر) (مص تر) (۱) چاته صحيح لار ښـئيل ـ په درستې لارې روانـه ول ـ رهنمائي کول ـ (۲) برابرول يو شان ـ

که عريان دي نېکان پد په زربفت شي

گـــوره نـۀ مرهې له نيکا نو پدان سم! (سعيد)

**سموم** :- (س+مو+م) (ع ـ اس ـ مـذ ـ ج ـ ونـه) ډېر تـود بـاد ډېره گرمـه هـوا چې صحراگونو او بېديا گانو کښې د اوړي په موسم کښې الوزي ـ

په سموم يحموم کښې بند په لمبو سوځي

اژدهـــــا کـــژدم ئې زوړند په اجساد شي (حافظ)

**سـمون** :- (س+مـو+ن) (اس ـ مـذ ـ ج ـ ونـه) درسـتي ـ برابـرے ـ نېغـوالے ـ موافقت ـ

**ــــ خوړل**:- (مص تر) برابرے خوړل ـ موفقت راتلل ـ

**ــــ تون**:- (تـو+ن) (اس ـ مـذ) د سـمولو يـا د جوړولـو يـو ځـاے ـ د مرمـت ځاے ـ کارخانه ـ ورکشاپ ـ

**ــــ وال**:- (وا+ل) سمون ورکوونکے ـ سمونکے ـ درستونکے ـ

**سمونه** :-(س+مو+ؤ+ن) (حمص) درستونه ـ برابرونـه ـ صحيح کونـه ـ د کړليچ يستنه ـ نېغونه ـ

**سموونکے** :- (س+م+وو+ن+کے)(اف فا ـ مذ ـ ج ـ کي) درستوونکے ـ برابرونکے ـ نېغوونکے ـ

**سمه** :-(س+م) (پ ـ صف ـ ج ـ سمے)(۱) د سم تانيث (وــ سم)(۲)هواره علامه يا زمکه ـ د غر يا د غرئيزې ضد ـ

**ــــ او غر**:- (او ، غ+ر) هم سمه او هم غر ـ هر قسمه ملک لوړه او ژوره (جوره) مجازاً هر ځاے ـ

**ــــ تخته**:- ستوني ستغ ـ چې ملا په زمکه (يا کټ وغېره) لگېدلې وي ـ او مخ اسمان طرفته وي ـ

**سمه (توره)** :- (ق) (اس ـ مو ـ ج ـ سمې تورې) کربچ ـ کرچ ـ

**ــــ خبره**:- (خ+ب+ر) درسته خبره ـ صحيح خبره ـ حقه خبره ـ

**ــــ (نۀ) کول**:- سمه روغه خبره نۀ کول ـ په سمه خوله خبره نۀ کول ـ

د هغو د خولې کړې خبرې آورم

چــې خبره ورته نۀ کړه سمه ما (خوشحال)

**ــــ دمه**:- (د+م) وــــ سم دم)

**ــــ دمه خبره**:- صحيح او درسته خبره ـ چې د کړلېچ يا د ورانئ څۀ مقصد پکښې نۀ وي ـ

**ــــ سلا**:- (ر ـ ق) (اس ـ مـو ـ ج ـ سمې سلاگانې) مشـوره ـ سلا ـ صـوابديد ـ (سلا د صلاح بدل شکل دے)

**ــــ ده**:-(د) (محاوره) ستا خبره يا د خبره ورسته ده ـ صحيح ده ـ

**ــــ لار**:-(لا+ر) درسته لار ـ نېغه لار ـ صراط المستقيم ـ

**ــــ مخه**:- (ر ـ ق) هواره سطحه ـ مستوي سطحه ـ

**په ــــ خله خبرې نۀ کول**:- غاوره ـ کبرجن ـ "بودل" ځان ډېر گڼل ـ

**په ــــ ستر گه کتل**:- په ښۀ نظر کتل ـ مهربانه کېدل ـ عموماً پـه نفس کښې استعمالېږي يعني په سمه ستر گه نۀ کتل ـ

**پـه ــــ غـر پـه**:- (پ، +غ+ر+پ) هم پـه غـر هـم پـه سمه ـ هـم پـه غرئيـزه علاقـه ـ مجازاً په هر ځاے کښې ـ هر چاته ـ

په سمه که په غرۀ دي د بهار خاصه گلونه (خوشحال)

**خوله ــــ خوځول**:- د خولې نه خرابې خرابې ايستل ـ کنځل يا سپکې خبرې نۀ کول ـ عموماً بل ته د تنبيه د پاره وئيلې شي چې ، خوله سمه خوځوه ـ

**ــــ غرواه**:- (غ+ر+او)(وــــ سمه او غر)

**سمه تارک** :-(س+م+تا+ر+ک)(ق ـ صف تر) مرغو په استقامت سره دام طرف تـه تگ ـ لکه: مرغۍ سما تارک لاړے ـ

**سمي** :- (س+م+ي) (اس ـ مو)د عمارت ساز يو اله ـ

**سمے** :- (س+مے)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ي)مهندس ـ زنجير ـ

**ــــ**:- (س+مے) (اس ـ مذ ـ ج ـ ل سمي)سمرن ـ برابرے ـ واره ـ

**ــــ خوړل**:- برابـرے راتلـل ـ سمون خوړل ـ واره راتلـل ـ مطابقت لـرل ـ حسن اتفاق کېدله لکه: زما خو طمع نۀ وه خو سمے ئې وخوړ ـ

**ــــ راتلل**:- برابـرے راتلل ـ سمون خوړل ـ واره راتلـل ـ مطابقت راتلـل (زما پـه دې بيعه سمے نۀ راځي)

**سمي** :- (س+مي) دسمے اضافي يا مجروري حالت ـ لکه د سمي خبرۀ يـا خپـل سمي ته گوره ـ

**ــــ ته کتل**:- برابـري تـه کتـل ـ ضـرورت يـا طاقت يـا وارې وغېـره تـه کتـل ـ مناسبت او موزونيت ته کتل ـ لکه ـ زۀ به خپل سمي ته گورم ـ

**سمّيت** :- (س+م+مي+ي+ت)(ع ـ اس ـ مذ)زهروالے ـ د زهرو اثر ـ

**سمېدل** :- (س+مې+د+ل)(۱) نېغېدل ـ صحيح کېدل ـ کوږوالے لرې کېدل ـ (۲) اخلاق درستېدل ـ په سمه لار کېدل ـ بد کار يا بد کارنه پښېمودل ـ

**سمېدنگ** :-(س+مې+د+ن+گ) وــــ سمېدنه)

**سمېدنه** :- (س+مې+د+ن)(حمص) کوږوالے لرې کېدنه ـ نېغېدنه ـ صحيح کېدنه ـ درستېدنه ـ

**سـمېدونکے** :- (س+مې+دو+ن+کے)(اس ـ فـا ـ ج ـ کي)(۱) سم کېـدونکے ـ نېغېدونکے ـ (چې کوږوالے پکښې پاتې نۀ شي) صحيح کېدونکے ـ درستېدونکے ـ (۲) پـه اخلاقـو ښۀ کېـدونکے ـ لـه بـدو چـارو وغېـره اوړېدونکے ـ

**سـميع** :- (س+مـي+ع) (ع ـ اس)(۱) اورېـدونکے ـ (۲) د خـداے پـاک يـو ښکلے صفاتي نوم دے ـ

بې ادبه نعرې مه وهه په زوروره
پـــه ورور ئې یاده وه دلبر سمیع (خواجه محمد بنګش)

**سمیل یا سمل خېل** :- (س+مـې+ل/ش+م+ل/خېـل)(اس مع)صحیح امـلا اسمعیل خېل۔ ده دا ئې عوامي مخفف دے۔ (و ـــ سماعیل خېل)

**سیمل یا سمل زئ** :- (س+مـې+ل/س+م+ل+ز+ئ) سـمل یـا سـمل د اسماعیل مخفف دے۔ عـوام د اسماعیل پـه ځـاے سمیل یا سمل وائـي۔ ځکـه و اسماعیل زئ ، (۱) (۲) وغېره۔

**سمپلاني** :- (س+مې+لا+ني) (اس مع)د اډانیـو یـوه څانګـه ده چې سپین ترین دي۔

**سـمیل خېـل** :- (س+مي+ل+خېـل)(اس مع)صـحیح امـلا "اسـماعیل خېـل" ده "سمیل" د اسماعیل عوامي مخفف تلف دے۔ (و ـــ اسماعیل نمبر۷)

**سمیل زئ** :- (س+مـي+ل+ز+ئ)(اس۔ مع)(صـحیح تلفـظ اسـماعیل زئ د ګـور دي)

**سمین** :- (س+مي+ن)(ع۔ صف مذ۔ مو۔ ه)غټ۔ څورب۔

**سمینار** :- (س+مي+نا+ر)(انـګ۔ اس۔ مـذ۔ ج۔ ونه)مدرسـه۔ متکـب۔ (خصوصاً مذهبي) د تعلیم۔ زده کړې ځاے۔ سمینار۔

**سمینه** :- (س+مي+ن)(ف۔ اس۔ مو) د یو قسم نرۍ او نازکې کپړې (ټوکې) نوم دے۔

**سن** :- (س+ن)(اس۔ مذ۔ ج۔ ونه)د عربۍ د سنه مخفف شکل دے۔ د جنترۍ کال د کیلنډر۔

ـــ:۔ (س+ن)(ع۔ اس۔ مذ)عمر۔ د عمر د کلونو شمېر۔

**ـــ بلوغت**:۔ (ب+لو+غ+ت)(عف تر۔ اس۔ مذ)د بـالغ کېـدلو کلونـه۔ د ځوانېدو عمر

**ـــ تمیز**:۔ (ن+ت+مي+ز)(عف تر۔ مذ)په ښهٔ بـد ه د پوهېدلو عمر۔ هغـه عمر (د عمـر کلونـه) چـې هلـک شـي او د ښـهٔ او بـد فـرق کـولے شـي۔ د هوښیارېدو عمر

**ـــ تمیز ته رسېدل**:۔(مص تر)(۱) د هلک هغه عمر ته رسېدل۔ چې په ښهٔ او بد د پوهېدو تمیز او عقل لري۔ (۲) ځـوانۍ تـه رسـېدل۔ ځونېـدل۔ زلمـے کېدل۔

**ـــ رسیدهٔ**:۔ (ر+سي+د) (ف تر۔ مذ۔ مو)عمر تـه رسـېدلے۔ مجازاً خپـل پـوخ یـا زوړ عمر ته رسېدلے۔ بوډا۔ زوړ عمـرے۔ (خلق عموماً د "سین" پـه ځـاے سَن" وائي۔ یعني سن ته رسېدهٔ)

**ـــ شعور**:۔ (نِ ش+عو+ر)(و ـــ سن تمیز)

**سنا** :- (س+نا)(اس۔ مو۔ ج۔ ګانې) د یو مشهور بوټي نوم دے۔ چې پاڼې ئې د دارو (جلاب) په طور استعمالولے شي۔

**ـــ مکّي**:۔ (م+ک+کي) (ع تر۔ مو)د مکې سنا پـه کمت کښې د مکې پـه زمکـه پیدا شوې سنا ډېره اثرناکه ګڼلې شي۔

ـــ:۔ (س+نا)(فر۔ اس۔ مو)دا عیانو مجلس۔ سېنټ۔

**ـــ مجلس**:۔(م+ج+ل+س)سېنټ۔ انتظامي با اختیاره جرګه۔

ـــ:۔ (س+نا)(فر۔ اس۔ مو۔ ج۔ ګانې)سېنټ۔ انتظامي با اختیاره جرګه۔

**سناتوریم** :- (س+نا+تو+ر+ي+م)(و ـــ سني ټوریم)

**سناټیا** :- (س+نا+ټ+یا)(اس۔ مع)د کـاکړو یـوه لویـه قبیلـه ده۔ چې پـه اتـو څانګو کښې وېشلې شوې ده پـه دې کښې هـارون خېـل ، او عیسیٰ خېل ډېرې اهمې دي۔

**سناد** :- (س+نا+د)(ع۔ صف)(۱) مخـالف۔ (۲) د قـافیې پـه علم کښې د قـافیې اختلاف ته وائي۔ لکه داد او دید یا زمان او زمین۔

**سنار** :- (س+نا+ر) (ق۔ اس۔ مذ۔ ج۔ ونه) د یـوې پخـوانۍ سـیکې نـوم دے چې د افغانستان د لسو پولو برابر ده۔ لس پسیز۔ لس ایکې۔

ـــ:۔ (س+ُنا+ر) (ه۔ اس۔ مذ۔ ج۔ ان) زرګـــر۔ د زرو کــالي وغېــره جوړوونکے (عموماً "د سینار" په شکل کښې استعمالېږي)۔

**سناري** :- (س+نا+ري)(ق۔ صف)(۱) سورنګ۔ (۲) سنهري رنګ۔ سرو زرو په شان رنګ۔

**سناریو** :- (س+نا+ر+یو)(انګ۔ مذ)د فلم قیصه۔ مکالمې یا منظر نګاري

**سنازئ** :- (س+نا+ز+ئ)(اس۔ مع)د اتمـان خېلو پـه اتـو قبیلـو کښـې د یـوې قبیلې نوم دے۔

**سناسي** :- (س+نا+سي)(و ـــ سنډاسي)

**سنان** :- (س+نا+ن)(ع۔ مذ۔ ج۔ ونه)(۱) د نېزې وغېره تېره څوکه(۲) د غشي څوکه۔

**سناني** :- (س+نا+ن+ي)(پ تر)چې سنان سره تعلق لري۔ د نېزې۔

**سـنبال** :- (س+م+با+ل)(صـف۔ مـذ۔ مـو۔ ه)(۱) محفـوظ۔ پـه حفاظـت کښـې۔ (۲) د څهٔ کار یو مهم وغېره د پاره تیار اماده۔ (۳) سنګار شـوے۔ زېب و زینت کړے اراسته۔

**ځان ـــ سره کړه**:۔(جمله محاره) یوه جمله ده چې د چا د څهٔ څیز د حاجت نهٔ لرلو اظهار پرې کولے شي۔ زما ورتـه ضرورت نشته۔ زمـا نـهٔ دے (دي) پـه کار لکه: دا لُور دې ځان سره سنبال کړه (یعني ستا لور مې پکار نهٔ ده)

**ـــ خداے دومره درکړه چې سنبالولے ئې نهٔ شې**:۔(دعائیـه جمله ده) د مبالغې پـه طور استعمالېږي یعني خداے دې درلـه ډېر زیـات (دولت مـال وغېـره) درکړي

**سنبالول** :- (س+ن+بـا+ل+ؤ+ل)(مص)(۱) پـه حفاظـت سـره او پـه ښـهٔ طریقـه کښېښودل محفوظ کول (سمبالول)۔ (۲) درستول۔ تیـارول۔ (۳) (مجازاً) د مړي کفن دفن کول۔ مثلاً ډېر ښهٔ مو سنبال کړو۔

**ـــ د مړي**:۔ د۔ م+ړي) د مـړي د ګـور کفـن انتظـام کـول۔ مـړے پـه عـزت او احترام سره تر ګوره رسول۔

**ـــ ځان**:۔ (د)زا+ن)(۱) ځان تیارول۔ د څهٔ کـار د پـاره انتظام کـول۔ (۲) آرائش کول۔ سنګارکو۔ ځان جوړول۔

**سنبالونګ** :- (س+م+با+ل+ؤ+ن+ګ)(و ـــ سنبالونه)

**سنبالونه** :- (س+م+با+ل+ؤ+ن)(حمص)محفوظ کښېښودنه۔ په حفاظت کښې او په ښهٔ طریقه کښېښودنه۔

**سـنبالوونکے** :- (س+م+بـا+ل+وؤ+ن+کے)(اس۔ فـا۔ ج۔ کـي) پـه حفاظـت سـره کښېښودونکے محفوظ کښېښودونکے۔ په ښهٔ طریقه کښېښو د ونکے۔

**سنبالېدل** :-(س+م+با+لې+د+ل)(مص)(۱) په حفاظت کښې کښېښـودلے کېـدل۔ محفوظ کېدل۔ (۲) د څهٔ کار ، مهم وغېره د پاره تیارېدل۔ (۳) سنګار کېدل۔ ارائش کېدل۔

**سنبالېدنګ** :- (س+م+با+لې+د+ن+ګ) (و ـــ سنبالېدنه)

**سنبالېدنه** :- (س+م+با+لې+د+ن)(حمص)(۱) په حفاظت کښې کښېښودے کېدنه محفوظ کېدنه۔ په ښهٔ طریقه کښېښـودلے کېدنـه۔ (۲) تیارېدنه۔ (۳) سنګار کېدنه۔

**سنبالېدونکے** :- (س+م+با+لې+دو+ن+کے)(اس فا۔ ج۔ کي) محفوظ کېـدونکے۔ په ښهٔ طریقه کښېښودلے کېدونکے۔

**سنبل** :- (س+م+ب+ل)(ع۔ اس جم)د یو قسم ډېر خوشبوداره واښهٔ دي۔ چې د ګچې په شان ډېرې ګڼې اوږدې پاڼې لري۔ عموماً د ولـو پـه غـاړه کېږي۔ د

خوشبوئي په طور هم پکارولے شي او د دارو په طور هم د خوشبوي او د وېښتو په شان نرو نرو پاڼو په وجه شاعران ئې د معشوقو وېښتو سره تشبيه ورکوي (په هندي کښې ورته "بال چهړ" وائي او په فارسي او طب کښې ورته "پرسياؤشان" هم وائي) .

پـــه تبليس د لباس اشنا مـــه غولېږه

شنډ بې باره، بې حاصله سنبل څهٔ کړې (حافظ)

**ـــــ زار** :- (زا+ر) (عف تر - اس - مذ - ج - ونه) هغه ځاے چې پکښې سنبل ډېر زيات پيدا شوے وي .

**ـــــ الطيب** :- (ل+ط+طي+ط) (ع - اس - مذ) د سنبلو صفتي نوم دے خوشبوداره سُنبل - (وـــ سنبل)

**ـــــ مويه** :- چې د سنبل په شان اوږده او خوشبوينه وېښتهٔ لري

پرې رويه سنبل مويه ملک خويه

عنـبر بويـه لاله فامه راشه راشه (رحمان)

**ســـنبله** :- (س+م+ب+ل) (ع - اس - مـو - ج - لـے) (۱) د غنمـو وږے - خوشـه (۲) جونيک - جونيق - (۳) د اسمان په برجونو کښې د شپږم برج نوم دے - وږے -

**سنبوسه** :- (س+م+بو+س) (وـــ سموسه)

**سنبه** :- (س/سو+م+ب) (ف - مو - ج - سنبې) (۱) د اوسپنې يوه تېره الـه - چې په لرګي څرمن وغيره کښې د سرې کولو د پاره پکارېږي (۲) (ف) برمـــــه د ترکاڼانو د لرګي د سوري کولو الـه - (۳) د اوسپنې هغونډه ټوټه چې يو طرف ئې تېره څوکه وتې وي -

**سنت** :- (س/سو+(نُ)ن+ت) (ع - اس جم) (۱) روش - طريقه - طور - لاره - چاره (۲) د فقهې په اصطلاح کښې هغه طور طريقې چې رسوالله ﷺ او د هغوي صحابو ﷺ پرې عمل کړے دے - (۳) ختنـه - د ماشوم د سوخې نه د سر پرده پرې کول دا عمل د حضرت ابراهيم عليه السلام نه راروان دے بيا د رسول الله ﷺ او د هغوي صحابهٔ ﷺ هم کړے دے ځکه ددې عمل نوم "سنت" مشهور شو - (۴) په مانځهٔ کښې هغه رکاتونه (رکعتونه) کوم چې فرض نهٔ وي - خو رسول الله ﷺ باقاعدګۍ سره کړي دي -

**ـــــ ابراهيمي** :- (ا+ب+را+هي+مي) (عف تر - مذ) (وـــــ سنت (۳)

**ـــــ اخستل** :- د پوزې د لاندې لږ شان ځان خرئيل وائي چې دا د حضور پاک ﷺ سنت وو -

**ـــــ نبوي** :- (ن+ب+وي) (عـف تـر - مذ) هغـه کـار چې طـور طريقـه چې رسـول الله ﷺ پرې عمل کړے وي -

**ـــــ دي** :- دا کار يا عمل به رسول الله ﷺ تـل کولو - ځکـه مسلمان لـه هم کول پکار دي -

**ـــــ کول** :- (۱) په مانځهٔ کښې هغه رکتعونه ادا کول کوم چې فرض نهٔ وي - د حضور پاک ﷺ سنت دي - دا ځان له ، بغير د امام نه کولے شي (۲) (وـــــ سنتول)

**ـــــ وهل** :- (وـــ سنت اخستل)

**سنتره** :- (س+ن+ت+ر) (ه - اس - مـو - ج - رې) مشـهوره مېـوه - عمومـاً سـنګتره ورته وائي -

**سنتري** :- (س+ن+ت+ري) (انـګ - اس - مـذ - ج - ان) څوکيـدار - پهـره دار - حفاظت کوونکے - (عموماً د فوځ يا د پوليس څوکيدار ته وائي - چې په وردۍ کښې سره د وسلې په څوکۍ ولاړ وي) (انګريـزي اصـل لفـظ "سنتي نل" دے)

**سنتول** :- (س/سو+ن+ت+ؤ+ل) (مص) (۱) د ماشوم د سوخې د سر پرده يا څرمن پرې کول - (۲) مجازاً - ټګل - ډېر زيات قيمت وصولول - ډېر زيات تاوان کښې اچول -

**سنتونګ** :- (س/سو+ن+ت+ؤ+ن+ګ) (وـــ سنتونه)

**ســنتونه** :- (س/ســو+ن+ت+ؤ+ن) د سـنتولو عمـل - سـنت کونـه - د ماشـوم د سوخې د سر د پردې (يا څرمن) پرې کونه -

**سنتوونکے** :- (س/س+ن+ت+وو+ن+کے) (اس - فا - مذ - ج - کي) هغـه کس چې ماشـوم لـه سنت کـوي د ماشـوم د سـوخې د سر نـه پـرده يـا څـرمن پـرې کوونکے - (نائي يا ډاکټر) -

**سنتي** :- (س/سو+ن+تي) (اس - مذ - ج - ان) سنت شوے - يا سنت کېدونکے

**سنت يا ګو** :- (س+ن+ت+يا+ګو) (اس - مع) د يو ښار نوم - سينټ يا ګو -

**سنتېدل** :- (س+ن+تې+د+ل) (مص) (۱) د ماشوم د سوخې د سر پـرده يـا څـرمن پرېکړے کېدل - (۲) د څهٔ څيز په قيمت کښې ټګلے کېدل - په ډېر تـاوان کښې راتلل -

**سنتېدنګ** :- (س/سُو+ن+تې+د+ن+ګ) (وـــــ سنتېدنه)

**سنتېدنه** :- (س/سُو+ن+تې+د+ن) (حمص) د ماشوم سنت کېدنـه - د ماشـوم د سوخې د سر پرده يا څرمن پرېکړے کېدنه -

**سنتېدونکے** :- (س/سُو+ن+تې+دو+ن+کے) (اس مف - مذ - ج - کي) هغه ماشوم چې سنت ئې کېدونکے وي -

**سنټ** :- (س+ن+ټ) (انګ - اس - مذ - ج - ونه) (۱) خوشبوي - خوشبوي - عطر - (۲) د ارمريکې يوه وړه سکّه - (۳) سل - صد - پنځه شلې -

**ـــــ پرسنټ** :- (پ+ر+س+ن+ټ) (۱) په سلو کښې سل (واړه) سل في صد - (۲) مکمل - پوره - سر تر سره - ټول -

**ـــــ پر** :- (پ+ر) (انګ) په سلو پسې - په سلو کښې - في صد -

**ـــــ پـر سـټيج** :- (پ+ر+س+ټې+ج) (انـګ - اس - مـو) د سلو پـه حسـاب کښې (دومره) د سلو په شمېر کښې (دومره) شرح في صد -

**سنټر** :- (س+ن+ټ+ر) يا (س+ن+ټ+ر) (انګ - اس - مذ - ج - ونه) (۱) مېـــنځ - وسط - (۲) مرکز - مرکزي ځاے يا دفتر - (۳) د راجمع کېدو ځاے -

**سنټرل** :- (س+ن+ټ+ر+ل) (انـګ - صـفت) مرکـزي - د ميـنځ - منځومانـه - وسطي -

**سنټه** :- (س+ن+ټ) (ق - اس - مو - ج - ے) څهره - قيانه -

**ـــــ** :- (س+ن+ټ) (صف - مو - ج - سنټې) پڅـه - کنـده - لکـه: د فلانـي تـوره - سنټه شوه -

**سنټي ګريډ** :- (س+ن+ټي+ګ+رے+ډ) (انګ - صف) هغه څيز چې سل درجې لري - هغه ترماميټر چې د واوره کېدو درجه ئې صفر وي -

**سنټ سنټي نري** :- (س+ن+ټ+ن+ړي) (انګ - اس - مو) سل کليزه - سل کليز جشن -

**سنج** :- (کاکړ) (رق) (صف - مذ - مو - ه) بيروونکے - دهشت واله - ترهناک -

**سنج** :- (س+ن+ج) (ف - لاحقه) د فارسـي لاحقـه ده - نـورو الفـاظو نـه وروسـتو راځي - او د پوهې ، تميز تللو - اندازه لګولو په معنٰي کښې راځي لکه سخن سنج - د خبرې شاعرې خوبيو او معنو پوهېدونکے -

**ـــــ توب** :- (تو+ب)

**ـــــ تيا** :- (ت+يا) (وـــــ سنج والے)

**ـــــ والے** :- (وا+لے) (اس - مذ - ج - لي) اندازه لګونه - تول - تلنه - لارن -

**ـــــ سُخن** :- (س/س+خُ+ن) (ف تر - صف مذ - مو - ه) (۱) په خبره پوهېـدونکے - د خبـرې تـل تـه رسـېدونکے - (۲) د شعر پـه ښـهٔ او ب ، خـوبۍ او قباحت پوهېدونکے -

**ـــــ نکته**:- (نُ+ک+ت) (ف تر ـ صف ـ مذ ـ ج ـ ه) په نکته پوهېدونکے ـ د خبرې باریکۍ ته رسېدونکے ـ

**سنج** :- (س+ن+ج) (اس ـ م ـ ج ـ ونه) پړده ـ هغه دېوال چې د کوټې د چت د پاسه چارچاپېره جوړولے شي ـ

**سنجاب** :- (س+ن+جا+ب) (ف ـ مذ) د منږک نه لږ لوئ ځناور دے ـ چې څرمن ئې پشم داره وي ـ او ډېره پسته او ښائسته وي ـ پوستینونه او د دستانې ترې جوړولے شي ـ چې ډېرې قیمتي وي ـ دغې څرمنې (پوست) ته هم سنجاب وائي

**سنجاع** :- (س+ن+جا+ع) (وـــــ سجناق)

**سنجاق** :- (س+ن+جا+ق) (ع اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) جنډه ـ شاهي بیرق ـ چې عموماً ورسره داسې ترلې شوے وي ـ

**سنجر** :- (س+ن(ج)+ج+ر) (ف اس ـ مذ ـ ج ـ ان) (۱) د یو ښکاري مارغۀ نوم دے ـ (۲) وجد ـ حال ـ او سماع واله خلق ـ

**ـــــ** :- (س+ن+ج+ر) (اس ـ مع) ابوالحارث احمد بن ناصرالدین یو سلجوق باچا ـ چې د خپلو متهو په زور په خراسان کښې خپله بادشاهي (په ۱۱۱۹ء) قائمه کړې وه ـ ډېر شان شوکت ئې لرلو ـ او د عالمانو ډېر قدردان ؤ ـ

**سنجرخېل** :- (س+ن+ج+ر+خېل) (اس ـ مع) د سدا خېلو یوه څانګه ده ـ چې (ر ، اسپرکا ، کالو خېل ، احمد زئ ، درویش خېل) وزیر دي ـ

**سنجش** :- (س+ن+ج+ش) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) سنجونه ـ اندازه لګونه ـ تلنه ـ

**سنجول** :- (س+ن+ج+ؤ+ل) (مص) (۱) تلل کول ـ درښنت معلومول ـ (۲) د قدر قیمت اندازه لګول ـ

**سنجه** :- (س+ن+ج) (ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ سنجې) غټه تتکۍ ـ د مبل ـ شجه ـ

**ـــــ** :- (س+ن+جه) (ف ـ اس ـ مو) تللو کانړے ـ

**ســـنجیدګي** :- (س+ن+جي+د+ګـي) (ف ـ اس ـ مـو ـ ج ـ ګـې) (۱) وزن لرنـه ـ درښنت ـ درون والے ـ (۲) مجازاً په عادت او عمل درون والے ـ متانت ـ درښنت ـ

**سنجیده** :- (س+ن+جي+د) (ف ـ صف) (۱) درونـد ـ وزن دار (۲) متـین ـ درونـد خوږ ـ درون خوئي والـه ـ ښۀ پـوهې او سـوچ فکـر والـه (چې سـپکوالے او مسخرګي پکښې نۀ وي)

**ـــــ کېدل**:- تللے کېدل ـ

**سنځل** :- (س+ن+(د)ز+ل) (اس ـ مذ) (وـــ سنځله)

**سنځله** :- (س+ن+(د)ز+ل) (اس ـ مو ـ ج ـ لې) یوه مېوه چې د عناب هومره وي ـ ددې مېوې ونې ته هم وائي ـ

سنجد رنګ د ګلاب ، بوي د سنځلې ـ (متل)

**سنچري** :- (س+ن+چ+ري) (انګ ـ اس ـ مو) (۱) صدي ـ پېړۍ ـ د سلو کالو وخت یا وقفه ـ (۲) د کرکټ په لوبه کښې د یو لوبغاړي منډې (رن) برابرول ـ

**ـــــ جوړول**:- (انګې تر) د کرکټ په لوبه کښې چې یو لوبغاړے خپلې سل منډې پوره کړي ـ نو وائي چې یوه سنچري ئې جوړه کړه ـ سل منډې برابرول ـ سل "رنز" پوره کول ـ

**سنچوټ** :- (س+ن+چو+ټ) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) کـاڼي هغه نښـانه یو ټکۍ (هدف) چې په دېوال کښې لګولے شوے وي ـ

**سند** :- (س+ن+د) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) رائے ـ اتفاق ـ مصلحت ـ

**ـــــ سره یو کول**:- رائے سره یو کول ـ اتفاق کول ـ

**ـــــ کول**:- اتفاق کول ـ رائے یوه کول ـ

اولسونـه چـې سند وبلـه وکا
بادشاهان ورته سجود کا اختیار (خوشحال)

**ـــــ یو سندي**:- (یو+س+ن+دي) (صف) سره یو ـ متفق ـ

**سند** :- (س+ن+د) (ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) تصدیق ـ ثبوت ـ دلیـل ـ (۲) هغـه کاغـذ چې د یـو امتحـان د پـاس کولـو پـه تصدیق کښـې د ادارې د طرفـه چالـه ورکـړے شي ـ (۳) د پخـواني شـاعر هغـه شعر چې د کـوم لفظ یـا د محاورې د درستۍ په ثبوت کښې وړاندې کړے شي ـ

**ـــــ اخستل**:- د کوم امتحان د پاس کولو نه پس ددغې ادارې نه خاص کاغذ اخستل په کوم چې ددۀ د امتحان د پاس کولو د قاعدې مطابق تصدیق شوے وي ـ

**ـــــ راوړل**:- (مص تر) ثبوت پېش کول ـ په طور د دلیل (څۀ کاغذ ـ شعر وغېره) وړاندې کول ـ

**ـــــ غوښتل**:- ثبوت غوښتل ـ په دلیل کښې څۀ لیکلے کاغذ ، شعر وغېره غوښتل ـ

**ـــــ ګرځول**:- دلیل ګرځول ـ په طور د ثبوت منل ـ (شعر ـ دلیل وغېره) معتبر ګرځول ـ

**ـــــ ګڼل**:- (ګ+ن+ړ+ل) (مص تر) دلیـل ګڼل ـ ثبـوت ګڼل ـ دلیـل یـا ثبـوت تسلیمول ـ معتبر ګڼل ـ

**ـــــ منل**:- طالب علم ته ـ د یو امتحان د پاس کولو نه پس ددې د تصدیق د پاره هغـه خـاص کاغـذ ورکـول ـ پـه کـوم چې د ادارې مهـر او د سـربراه (یـا سربراهانو) دستخطونه شوې وي ـ

**ـــــ یافته**:- (یا+ف+ت) (ف تر ـ صف) (۱) هغه کس چا چې د څۀ زده کړې په حقله سند اخستے وي ـ هغـه کس چې د څۀ کار قابلیت وغېره سند لري (۲) (طنزاً) په څۀ بد کار کښې ماهر یا مړنے ـ

**سِند** :- (س/سي+ن+د) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) دریـاب ـ سـیند ـ سـین ـ (۲) د اباسین زوړ نـوم دے ـ پـه نـورو علاقـو کښـې د سند (س+ن+د) یـا د سیند په نوم بللے شي ـ (نور نومونه هم لري) (۳) د پاکستان یوه صوبه ـ چې اباسین په دغه ملک کښې هم بهېږي اس اخر د عرب په سمندر کښې ورګډ شي ـ

**د ـــــ دریاب**:- (د+ر+یا+ب) (اس ـ مع) اباسین ـ دریائے سنده ـ

**سنداً** :- (س+ن+د+ن) (ع ـ تف) د سند په طور ـ د ثبوت په طور د دلیل د پاره ـ

**سندان** :- (س+ن+دا+ن) (ف ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) د لوهارانو هغه مشهوره درنه ـ اوسپنیزه اله چې د اودرولو د پاره په زمکه کښې ښخه کړے شي ، بره سرئې هوار او پلن وي ـ یو طرفته ځوکه شان وتې وي ـ لوهاران په دې باندې ګرمه کړې اوسپنه په پلکونو ټکه وي او د کر ځېزونه ترې جوړه وي ـ (۲) زر ګرانو سره همدغه سره یو اله وي خو هغه سپکه او وړه وي ـ چې سرو او سپینو زرو باریک کار پرې کولے شي ـ (۳) (مجازاً) مضبوط او طاقتور سړے چې هر قسم ګزارونه (تکلیفونه) زغملے شي ـ

**ځان ـــــ کول**:- (۱) ځان هر قسم سختو ته تیارول ـ (۲) مال دولت جمع کولو سره خپل پوزیشن مضبوطول ـ

**سندانګه** :- (س+ن+دا+ن+ګ) (ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ ګې) د چرګ شاتېنګه ـ

**سندخ** :- (س+ُن+د+خ) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د صندوق بدل شکل دے ـ

**سندر** :- (س+ن+د+ر) (سابقه) د سندره مخفف دے ـ د نورو الفاظو نه وړاندې راوستے شي ـ

**ـــــ پوهه**:- د عروض علم ـ (نوے اختراع ده) (ا ـ ق)

**ـــــ غاړے**:- خوش وازه سړے ـ چې سندرې وائي مجلسي ـ ډم ـ

**سندراني** :- (س+ن+د+را+ني) (اس ـ مع) دا ډوانیـو یـوه څانګـه ده ـ چې سپین ترین دي ـ

**سندرېږے** :-(س+ن+د+ر+پ+ږ+ےاژے) (ق۔اس۔ مذ۔ج۔ي) یو خودرو بوټے دے چې ډېر نوم شان ازغي لري۔ څاروي ئې خوري او چې نوے ټوکیدلے او نازک وي۔ نو د کلو خلق ئې هم خوري۔

**سندرغاړ** :-(س+ن+د+ر+غا+ړ)(سابقه) د سندر غاړے "مخفف"۔ د نورو الفوظو نه وړاندې راځي۔

**ـــ توب**:۔ د سندر غاړي کار کونه۔ خوش اواز سره نغمې وغیره وئیل۔

**سندرکا** :-(س+ن+د+ر+کا) (اس۔ مو۔ج۔ کې) فواره۔ چړک۔ داره۔ دردرے تیندوبے۔

**سندره**:- (وردګ)(س+ن+د+ر)(اس۔ مو۔ج۔ رې) نیندره۔ د خېرات چنده۔

ـــ:۔(س+ن+د+ر)(اس۔ مو۔ج۔ې) نغمه۔ په خوږ او اوچت اواز وئیلے کېدونکے۔ خاص منظومه۔ (لوبه چاربېته۔ غزل وغېره)

**سندره خېل** :- (س+ن+د+رَ+خېل)(اس۔ مع) دشمي خېلو یوه څانګه ده۔ چې(جلال خېل ، نانا خېل ، بهلول زي) محسود دي۔

**سندرئیزه** :- (س+ن+د+ر+ي+ز)(اس۔ مو۔ج۔زے) هغه نغمه چې پکښې ټپې هم ورکړې شوې وي۔ د ټپو (مصرعو) په بنا جوړه شوې نغمه۔

**سندري** :- (س+ن+د+ري)(اس۔ج)د سندره جمع ده۔

**ـــ بولل**:۔(۱) سندرې وئیل۔ غزلې وئیل۔ (۲) صفت کول۔

**ـــ وئیل**:۔ (۱) نغمې وئیل۔ نظمونه په خوش اوازۍ سره وئیل۔ بدلې وئیل۔ غزلې وئیل۔ (۲) خوشحالي کول۔

**سندریال** :-(س+ن+د+ر+یا+ل)(اس۔ مذ۔ج۔ان۔مو۔ه) شاعر۔ بدل زن۔ چندے۔

**سندړ** :- (س+ن+د+ړ)(ق۔اس۔ مذ۔ج۔ونه) اوبښ۔

**سندس** :- (سُ+ن+د+س)(ع۔اس) (۱) یو قسم قیمتي رېښمینه کپړه۔ دیبا اطلس۔ (۲) هغه رېښمینه کپړه چې زري تارونه پکښې استعمال شوي وي۔

خوب په پوزي ښه دے چې بې داغه بې تهمت وي
نــــهٔ دے پــــه سنـد سوښه سره و مـــــلامـت (حافظ)

**سندک** :- (س+ن+د+ک)(اس۔ مذ)د یو بوټي نوم دے۔ زهر ګاو۔

ـــ:۔ (سُ+ن+دُ+ک) د"صندوق" بدل شکل دے ، صندوق۔ بکس۔

**سندلې** :- (س+ن+د+ل+ې) (اس۔مو) یوه لوبه برستن چې یوې چوکۍ د پاسه واچولے شي۔ او ددغې چوکۍ د لاندې انګیټۍ کښېږدي۔ دغه شان چار چاپېره خلق په دغه برستنه ځان ګرموي۔

**سندنے** :- (س+ن+د+نے)(اس فا۔ج۔ نې۔مو۔نۍ) سیند (دریاب) سره تعلق لرونکے۔ سیندنے۔ دریابي۔

**سندوخ** :- (س+ن+دو+خ)(اس۔ مذ۔ج۔ونه) د "صندوق" بدل شکل دے۔

**سندور** :- (س+ن+دو+ر)(ه۔اس جم) یو قسم سرخ نارینجي یا سرۀ پوډر چې زنانه ئې د سر په لار کښې دوروي۔

**سندؤل** :- (س+ن+د+ؤ+ل)(مص) اتفاق کول۔ رائے یو کول۔

چې نېکي کړې یا بدي کړې
واړه تـــا سنـــــد وي زړۀ (خوشحال)

**سندوے** :-(س+ن+دو+ے)(اس۔ مذ۔ج۔ ئ)د ګل لاله بوټے۔

**سندهه** :- (س+ن+د)(اس۔مع)(۱) د اباسین نوم۔(۲) په پاکستان کښې د یوې صوبې نوم په کوم کښې اباسین (دریائے سندهه) سمندر (بحیره عرب) ته ورکوزېږي۔

**سندهي** :- (س+ن+د+ے)(اس مذ۔ج۔ان۔مو ئ)د سنده د ولایت اوسېدونکے۔

**سِندے** :-(س+ن+د+ے)(اس۔مع)د سند علاقې (صوبې) اوسېدونکے سندهے

که هندي دي کــــه سندي دي مخ ئې تور شه
نـــــهٔ حیا نـــــهٔ ئــــــې وفا نهٔ ناز وآش (خوشحال)

ـــ:۔ (س+ن+د+ے) (وـــ سندوے)

**سنډ** :- (س+ن+ډ)(صف۔ مذ۔مو۔ه) شنډ۔وچ۔ هغه سړے یا ښځه چې بال بچ ئې نهٔ کېږي۔

**سنډ** :- (س+ن+ډ)(اس۔ مذ۔ج۔ونه) څنډ۔ د څنډلو یو وار حرکت لکه یو څنډ ورکړه! یعني یو ځل ئې وڅنډه۔ (صحیح املا:څنډ)

ـــ:۔ (سُ+ن+ډ) (وـــ سونډ)

**سنډا** :- (س+ن+ډا)(اس۔ مذ۔ج :سنډګان)(۱) د مېښې نر جنس۔ (۲) (تشبیهاً) غټ او څورب سړے (خصوصاً په کار کې هم سست ي)

**ـــ ته رباب وهل**:۔ سنډا د رباب په خوند ترڅه زده! بې فائدې کار کول۔ عبث ځان ستړے کول۔ مېښې ته بین غږول۔

**سنډاسي** :- (س+ن+ډا+سي) (اس۔ مذ۔ج۔ان) (۱) د هندوانو د فقیرانو فقیرانو یوه ډله۔ چې دنیا نه ګوښه شوي وي(اصل لفظ"سنیاسي" دے پښتو کښې بدل شوے دے)

په دربار ئې سنډاسي شه،ورته کښېنه
تـــار په تار د سر وېښتهٔ، ایرې مښلے (رحمان)

(۲) داسې قسم ځینې فقیران د دارو درملو کار هم کوي۔ ځکه هندو داروګر فقیر ته هم وائي۔

**سنډاګے** :- (س+ن+ډا+ګے)(اس۔مع)د سوات غرخاته طرفته یو کلے چې د یو مجاهد د سنډا ملا په وجه مشهور دے۔

**سنډاکي بابا** :- مشهور پښتون عالم۔ مشر او مجاهد د سوات په سنډا په سنډاکي نومي کلي کښې په ۱۲۳۷ء کښې زېږېدلے ؤ۔ د پېرنګیانو سخت دښمن ؤ۔ سوات ، دیر ، باجوړ کښې ئې د پېرنګیانو خلاف خلق راپورته کول شیخ الهند محمود الحسن ﷺ سره ئې رابطه قائمه وه۔ په طرابس کښې ئې شیخ منوسي سره هم مرسته کړې وه۔ په اخره کښې شاه امان الله خان هم ددهٔ استاذه سره د پېرګیانو خلاف د مرستې وعده کړې وه۔ خو چې ددهٔ استازې واپس راغے نو دے وفات شوے ؤ

**سنډک** :- (س+ن+ډ+ک)(ق۔اس۔ مذ۔ج۔ونه)د شومولو وغېره د چاڼ کولو د پاره ټوټه

**سنډګان** :- (س+ن+ډ+ګا+ن) (اس۔ج)د سنډا جمع ده۔ (وـــ سنډا) مجازاً زوره ورو او طوقتورو خلقو ته هم وائي۔

**سنډل** :- (س+ن+ډ+ل)(وـــ څنډل)

**سنډلے** :- (س+ن+ډ+لے)(وـــ څنډلے)

**سنډه** :- (س+ن+ډ)(وـــ څنډه)

ـــ:۔ (س+ن+ډ)(اس۔ مو۔ج۔ ډې)سمسره۔ څمڅره۔ (هنه۔ ساتپه)

ـــ:۔ (س+ن+ډ)(اس۔ مذ۔ج۔ ډي)د زرکې یو قسم۔ چې په قد ترې وړه او رنګ ئې تور وي۔

**سن ډے** :- (س+ن+ډ+ے)(انګ۔ مع)د اتوار ورځ۔

**سنډي کیټ** :- (س+ن+ډي+کے+ټ) (لاط۔اس۔ مذ۔ج۔ونه)د منتظمینو یو جمات یا غونډه۔ د حاکمانو مجلس۔ انتظامي ټولے۔

**سڼ** :- (س+ن+ړ)(اس۔جم) د ارهرو په شان یو بوټے چې پټ ته ئې هم سڼ وائي۔ ددې نه سوترئي (سوتلې) پړي۔ بیاستې۔ بوجۍ او ټاټ وغېره ترې جوړېږي

ـــ:۔ (س+ن+ړ)(اس صورت) نرے شان اواز۔ چُڼ۔

**ـــ ختل**:۔(مص تر) معمولي یا نرے شان اواز د خولې نه وتل دا عموماً د نفي

په صورت کښې استعمالېږي ـ (و ـــ سوڼنه ختل)

**سنکه** :- (س+ن+ړ+ک)(و ـــ څڼکه)

**سنکې** :- (س+ن+ړ+ک+ئ)(و ـــ څڼکۍ)

**سنه** :- (س+ن+ړ+ه)(و ـــ څڼه)

**سنې** :- (س+ن+ړ+ې)(اس جم) هغه وېښتۀ چې د تندي دواړو اړخونو ته پرې ښودے شوے وي څڼې ـ څوڼے ـ کاکل ـ (و ـــ څڼې)

ـــ **داوربل**:ـ(و ـــ څڼې د اوربل)

ـــ **سر کول**:ـ(و ـــ سرڅڼې کول)

**سنیز** :- (س+ن+ړي+ز)(صف) (۱) د سنو سره تعلق لرونکے (۲) د سنو نه جوړ شوے

**سنزرخېل** :- (س+ن+ز+ر+خېل)(اس ـ مع)د کاکړو د ټولو نه لیه اس طاقتوره قبیله ده ـ ددې دولس ښاخونه دي علي خېل ، یاریزن خېل ، کبزي ، تائني برات خېل ، هرم زي ، علي زي ، عبدالله زئ ، سبزي ، خوئیدادزئ ، کودیزئ ، عرب خېل (یا عربي خېل) او دو مړ پکښې زیاتې اهمې دي ـ

ـــ **(ددغه)** :ـ(اس ـ مع) د یو بالیو یوه څانګه ده ـ چې (شنګي ، بهلول زئ) محسود دي ـ

**سنزل خېل** :- (س+ن+ز+ل+خېل)(اس ـ مع) د کما خېلو څانګه ده ـ چې (صاحب جان اکاخېل) افریدي دي ـ بیا میر سیّد خېل او امبراخېل د سنزل خېلو څانګې دي ـ (په یو ځاے کښې سانیال خېل هم لیکلے شوے دے)

**سنزلوک** :- (س+ن+ز+لو+ک)(اس ـ مذ ج) یو قسم بوټے چې ښاروي ئې خوري ـ اکثر د بلوط د ونو په مېنځ کښې موندے شي ـ تل شنۀ وي ـ او ډېرې نرے څانګې لري ـ

**سنزئ** :- (س+ن+ز+ئ) (اس ـ مع) یوه پخوانۍ قبیله چې پښتانۀ دي خو په عیسٰی خېلو ترکانړو کښې شمېرلے شي ـ

**سنس** :- (س+ن+س) (انګ ـ اس ـ مذ)(۱) حامه ـ احساس ـ شعور ـ (۲) فهم ـ عقل ـ لکه په دې کښې ـ څۀ سنس دے ـ

ـــ **کامن**:ـ (کا+م+ن) (انګ تر ـ اس ـ مذ) عام عقل ـ تمیز ـ عام شعور ـ لکه: دا خو د کامن سنس خبره ده ـ

**سانستیو** :- (س+ن+س+ټ+و) (انګ ـ ص) حساس ـ سریع التاثیر ـ لکه: د الات ډېر سنستیو دي!

**سنسر** :- (س+ن+س+ر) (لاط ـ انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان) (۱) پخواني روم کښې هغه افسر چې د خلقو د مال (او جائیداد نګراني به ئې کوله او د خلقو په اخلاقو به ئې نظر لارۀ ـ (۲) هغه افسر چې د اولس د خط کتابت چاپ کېدونکي کتابونو او اخبارونو کښې د حکومت خلاف د مواد نګراني کوي

**سنسکرت** :-(س+ن+س+ک+ر+ت)(اس ـ اس مع ـ مذ) یوه پخوانۍ هندي ژبه ـ چې د نن نه څۀ دوه نې دري زره کاله پخوا وئیلے کېده د هندوانو مذهبي کتابونه په دې ژبه کښې لیکلي شوي دي ـ د هندو پاک ژبې (بغېر د پښتو او بلوچۍ نه) د همدې ژبې څانګې دي ـ

**سنقر** :- (س+ن+ق+ر) (ت ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان) شنقار یوه ښکاري مرغۍ ده ـ د چرغ یوه قسم ده ـ پخوانو بادشاهانو به د مرغو د ښکار د پاره همدا مرغۍ خوښوله ـ

**سنک** :-(س+ن+ک) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) ښنانک ـ (۲) لرګینه کاسه ـ

ـــ :ـ (س+ن+ک) (ه ـ اس ـ مذ ـ ونه) (۱) د یو سمندر غټ چینجي ګوجے دے ـ چې د مېښو سنداګانو د ښکر هومره بلکې ددې نه هم لرې وي ـ هندوان ئې لکه د ښکر په شان په خپلو مندرونو کښې غږوي ـ د اسرافیل ﷺ دصور ترجمه ـ بعضې عالمانو همدغه سنکهه کړې ده ـ (۲) د هندي د شمېر یو لوي عدد چې د سلو کهر بو هومره وي ـ په لیک کښې ور سره دریالس صفرونه لګولے شي ـ

**سنکاره** :- (س+ن+کا+ر) (اس ـ مو ـ ج ـ رې) یو بوټے دے چې په دارو ګانو کښې پکارولے شي ـ سنګاره ـ

**سنکني** :- (س+ن+ک+ني) (هه ـ اس ـ مو ـ ج ـ ی) هندي عالمانو د ښځو څلور قسمه مقرر کړي دي ـ یو قسم پکښې سنکني دے ددې اوصاف دا دي ـ چې په قد لوړه د نګه ـ وېښتۀ ئې اوږدۀ ـ سترګې ئې ښکلې او غټې وي ـ په وجود نه ډېره غټه وي او نۀ ډېره نرۍ وي ـ خوشحال ددې نوم "نېک فرجامې" اېښې دي ـ

**سنکونا** :- (س+ن+کو+نا) (انګ ـ اس ـ مو) د امریکې د یوې ونې نوم ـ دې پوستکي نه ئې مشهور دارو "کونین" جوړېږي چې د موسمي تبو (ملیریا) د علاج د پاره ډېر فائده مند وي ـ

**سنکه** :- (س+ن+ک) (ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ سنکې) د کونترو دام ـ

**سنکیا** :-(س+ن+کي+یا) (ه ـ اس ـ مو) مشهور زهر دي ـ سم الفار (د منرکانوز زهر) (اصل لفظ "سکهیا" دے)

**سنګ** :- (س+ن+ګ) (و ـــ څنګ)

ـــ :ـ(س+ن+ګ) (اس صوت) (۱) شنګ ـ د ټوپک د ګولۍ یا د بل کوم داسې څیز (لکه مرغۍ) په خوا کښې تیزۍ سره د تېرېدو اواز ـ (۲) د ژړا نرے اواز ـ

ـــ **سنګ**:ـ (س+ن+ګ) (۱) د ژړا (جړا) مسلسل نرے اواز ـ (۲) د ټوپک د ګولو وغېره په خوا کښې د تېرېدو مسلسل اواز ـ

ـــ **وینګ**:ـد ماشومانو ژړا ـ (یا ضد)

ـــ **ومنګ**:ـ(س+ن+ګ+م+ن+ګ) (صف ـ مذ ـ مو ـ ه ـ ه) ګنګ و سنګ ـ چپ چاپ ـ پټه خوله ـ

ـــ :ـ(س+ن+ګ) (ف ـ اس ـ مذ) کاڼے ـ تیږې ـ

ـــ **انداز**:ـ (ان+دا+ز) (ف تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) مچغنه ـ (۲) د قلا په دېوال کښې هغه سوري چې ددې نه په دښمن کاڼي ویشتے شول ـ د مورچې سورے ـ

ـــ **اندازي**:ـ (ان+دا+زي) (ف تر ـ اس ـ مو) کاڼي ورونه ـ کاڼي ورغورځونه

ـــ **بالین**:ـ (با+لي+ن)

ـــ **بالش**:ـ (با+ل+ش) (ف تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه کاڼے چې د بالښت په ځاے د سر لاندې کېښېښودے شي ـ

ـــ **بسته**:ـ (ب+س+ت) (ف تر ـ صف) مضبوط ـ محکم ـ

ـــ **پارس**:ـ یو قسم کاڼے چې مسو سره ولګي نو سرۀ زر ترې جوړ شي ـ

هر چې په توجه ئې مس واړه زر کېږي
مهر کړه دلبره سترګې ستا وي سنګ پارس ئې (خواجه محمد)

ـــ **پښت**:ـ (پ+ښ+ت)(ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه) هغه ډوډۍ ـ چې د اوسپنې د تبخي په ځاے په کاڼي پخه شوې وي ـ

ـــ **جراحت**:ـ (ج+را+ح+ت) (اس ـ مذ) د یو خاص قسم کاڼي نوم دے ـ چې مېده کولے شي ـ او په زخمونو اچولے شي ـ یا د غاښونو پوډرو کښې استعمالېږي ـ

ـــ **خارا**:ـ(خا+را) (ف تر ـ اس ـ مذ) یو قسم کاڼے ـ چې نیل غونډې او ډېر سخت وي ـ

دنګ ئې د سرې وو امسا خویې ښاپېریو
تن ئې لکه سیم وو په زړۀ سخته سنګ خارا (خوشحال)

ـــــ **دان**:۔(دا+ن) (اس ۔ مو ۔ ج ۔ ونه) د مرغو شاتینګه ۔

ـــــ **دل**:۔(د+ل) (ف تر ۔ صف ۔ مو ۔ ه) سخت زړۀ واله ۔ سخت زړے ۔ نا ترسه ظالم ۔

ـــــ **ریز**:۔ (رې+ز) (اس ۔ ج ۔ ان ۔ مذ ۔ مو ۔ ه) (۱) کاڼي غورځونکے ۔ په کاڼو ویشتونکے ۔ (۲) سنګار کولو واله ۔

ـــــ **ریزي**:۔ (رې+زي) (ف تر ۔ اس ۔ مو) (۱) کاڼي ورغورځونه ۔ کاڼي ورونه ۔ (۲) سنګار کونه ۔

ـــــ **زر**:۔ز+ر)(ف تر ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)زر کاڼے ۔ کسوټي ۔ چې د زرو سره ناسره پرې معلوموي ۔

ـــــ **زن**:۔ (ز+ن) (ف ۔ تر ۔ صف ۔ مذ ۔ ه) هغه تله چې کم تلي ۔

ـــــ **شوئ**:۔ شو+ئ)په وینځلو سره (د وریجو) نه کاڼي وښکنه ۔

ـــــ **شوي کول**:۔ د وریژو (وریجو) نه کاڼي ویستل ۔

ـــــ **صحرا**:۔ ډېر سخت کاڼے ۔

پلار نیکۀ ئې فیروزه وو په جوهر کښې
لـه هغـو نه ئې ظهور سنګ صحرا دي (سعید ختک)

ـــــ **لاخ**:۔(لا+خ) (ف تر ۔ صف ۔ مذ ۔ مو ۔ ه) سنګیږ ۔ کاڼه زمکه ۔

ـــــ **مثانه**:۔ (م+ثا+ن)(اس ۔ مذ) هغه واړۀ کاڼي ۔ چې په مثانه (متیـازو کڅوړه) کښې پیدا شي ۔

ـــــ **مجاعت**:۔ (م+جا+ع+ت) (عف تر ۔ اس ۔ مذ) هغه کاڼے چې د لوږې د کبله په خېټه باندې تړلے شي ۔

ـــــ **یمن**:۔(ي+م+ن) (ف تر ۔ اس ۔ مذ) د یمن کاڼے ۔ مجازاً عقیق ۔

ـــــ **سنګار پور**:۔ (س+ن+ګا+ر+پو+ر) (اس ۔ مع) په جنوب مشـرق ایشـیا کښې د ملایا جزیرې په سر کښې یو مشـهور ښـار ۔ او بندر دے ښـار سره لږ شان علاقه هم سنګارپور بللے شي ۔ چې لږه موده وړاندې ازاده شوې وه ۔ وړومبے په دې د پېرنګیانو قبضه وه ۔

**سنګار**:۔ (س/سي+ن+ګا+ر) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) ځان جوړونه ۔ ځان خائسـته کونه ۔ ځان اراسته کؤنه ۔ سرخي پاوډر کول ۔

ـــــ **بکس**:۔ (ب+ک+س)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) هغه صدوقچه ۔ چې پکښې زنانه خپل د سنګار څیزونه (رانجۀ ، سرخي پوډر وغېره) کېږدي ۔

د ـــــ **کمره**:۔ (ک+م+ر)د ۔ کوټه(کو+ټ) هغه خاص کمره یا کوټه چې پکښې د زنانۀ د سنګار سامان ۔ کالي ، سرخي پاوډر وغېره پراته وي او ائینه (یا ائینې) پکښې لګېدلې وي ۔

ـــــ **ډول**:۔ (ډو+ل) (پ تر)د ځان جوړونه ۔ ځان اراسته کؤنه ۔

ـــــ **کول**:۔(مص تر)ډول پکښې د زور د پاره مزید علیه دے) ډېر زیات ځان جوړول ۔ پوره فیشن سره ځان اراسته کول ۔

ـــــ **کوټه**:۔ (کو+ټ) (اس ۔ مو ۔ ج ۔ تې) هغه کوټه چې پکښې د ډول سنګار څیزونه پراته وي او لویه ائینه (یا ائینې) په کښې لګېدلې وي ۔

ـــــ **مېز**:۔(مې+ز) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)هغه خاص قسم مېز چې مخامخ پکښې لویـه ائینـه یا ائینې لګېـدلې وي او ځان جوړونے سامان د پاره پکښې درازونه جوړ شوې وي ۔

**سنګارول**:۔ (س+ن+ګا+ر+ؤ+ل)(مص)ځان جوړول ، اراسته کول لکه: سرخي پوډر ، کالي اغوستل وغېره ۔

**سنګارونګ**:۔ (س/سي+ن+ګا+ر+ؤ+ن+ګ) (و ـــ سنګارونه)

**سنګارونه**:۔ (س+ن+ګا+ر+ؤ+ن)(حمص) اراسته کونه ۔ ښائسته کونه جوړونه ۔

**سنګاروونکے**:۔ (س+ن+ګا+ر+وو+ن+کے)(اس ۔ فا ۔ ج ۔ کي) هغه کس چې بل کس (ښځه) اراسته کوي ۔ ښائسته او ډول جوړوونکے ۔ ډمه ۔ مشاطه

**سنګاره**:۔ (س+ن+ګا+ر)(و ـــ سنګاره)

**سنګاري**:۔(س+ن+ګا+ري) (اس ۔ مو) چې سنګار یا سنګار(ځان جوړونې) سره تعلق لري ۔

له چینجو نه څۀ عجب ابراشیم زېږي
آغوستن د تن لیمنـو سنګـاري وي (حافظ)

**سنګارېدل**:۔ (س/سي+ن+ګا+رې+د+ل)(مص) اراسته کېدل ۔ سرخي پوډر کېدل ۔

**سنګارېدنګ**:۔ (س/سي+ن+ګا+رې+د+ن+ګ)(و ـــ سنګارېدنه)

**سنګارېدنه**:۔ (س/سي+ن+ګا+رې+د+ن) (حمص) اراسته کېدنه ۔ جوړېدنه ۔ ډول سنګار کېدنه ۔ سرخي پوډر کېدنه ۔

**سنګارېدونکے**:۔ (س/سي+ن+ګا+رې+دو+ن+کے)(اس ۔ فا ۔ ج ۔ کي) اراسته کېدونکے ۔ ځان جوړونکے ۔ سرخي پوډر کوونکے ۔

**سنګاره**:۔ (س+ن+ګا+ر) (ه ۔ اس ۔ مو) یو بوټے چې په اوبو کښې پیدا کېږي ۔ مېوه ئې کچه یا جوش کړې خوړے شي ۔

**سنګاوڼ**:۔(س/سي+ن+ګا+ؤ+ن+ړ)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)(۱) د کشـتۍ پـه سـر کښې یو حرکت کوونکې اله چې د کشتۍ رخ پرې سمولے او بدلولے شي ۔ (۲) (مجازاً) په یو کور ، مجلس وغېره کښې ډېر اهم سړے ۔

**سنګتاو**:۔ (س+ن+ګ+تا+و) (اس ۔ مذ)د یوې دوائي نوم دے ۔ چې د مرغـو د تور پیبخال علاج پرې کولے شي ۔

په نبات د غوا په سره باز صاف کا
یا علاج د سنګتا وکړه دم درمـال (خوشحال)

**سنګټ**:۔ (س+ن+ګ+ټ) (اس ۔ صـوت)ژړا چې پـه مـرۍ کښـې نښـتې راووځي ۔ رنګټ ۔ دینګار ۔ سونګټ ۔

ـــــ **وهل**:۔ د ژړا اواز وښکل ۔ رینګټ وهل ۔

ـــــ **منګټ**:۔ (م+ن+ګ+ټ) لاس و پښې تړلے ۔

**سنګر**:۔ (س+ن+ګ+ر)(ف ۔ اس ۔ مذ) وړوکې نېزه ۔

پـه هېڅ رنګ به ونۀ ووځي له خاطره
د اشنا مینه زمـــا پـــه زړۀ سنکر ده (خواجه محمد)

ـــــ:۔(س+ن+ګ+ر)(ف ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)(۱) مورچـه ۔ د کـاڼو وغېـره دېـوال ۔ چې د جنګ په موقع جوړولے شي ۔ مور چال سلتنه ۔ (۲) مورچه بندي ۔ قلا بندي ۔ (۳) د ازغو (اغزو) یا اغزن تارونه جوړو شوې هغه احاطه چې د باغ وغېره نه چاپېره جوړه کړے شي ۔ (۴) قلا ۔ قلاګني ۔ کالے ۔

ـــــ **ماتول**:۔ مورچه ماتول ۔ مورچه سنبول ۔ برے موندل (په چا)

په هوس هوس راځې طره پرې اېښے
ګوره بیاد د چا نوے سنګر مات کړ (خوشحال)

ـــــ **سنګر خېل**:۔ (س+ن+ګ+ر+خېـل)(اس ۔ مـع)د یوسف خېلو یـوه څانګـه ده چې عیسیٰ خېل مهمند دي ۔

**سنګري**:۔ (س+ن+ګ+ري) (اس ۔ مع) د بازیـد خېلـو یـوه څانګـه ده ۔ چې(حواجي، ادم خېل افریدي دي ۔

ـــــ:۔(س+ن+ګ+رئ) (اس ۔ مو)مشهور بوټے څنې خلق ئې د چایو پـه ځـاے یشوي ۔

**سنګرۍ**:۔ (س+ن+ګ+رۍ) (اس جم)غټې وریژې ۔ د شولو وریجې واک دے د ګوهرې چې پلمینه خوري که سنګرۍ ۔ (متل)

**سنګروبه**:۔(س+ن+رو+ب) د یو خوږ نوم دے ۔ چې د کرم پـه علاقـه دے ۔ د اتـل نه بهېرې کله کله پکښې اوبۀ راشي ۔ تشبیهاً د شوم سړي په حقله وائي څوک چې کله چېرتـه څۀ ښـۀ کـار کـوي ۔ (وګـره د کـور مې تـوئې) چېرتـه

سنګروبه او چېرته پلاؤنه ـ (متل)

**سنګړه** :- (س+ن+ګ+ړ) (ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ ړې) (۱) کانړے ـ ګټ (۲) لوېـه (کـانيزه) لوټه ـ

دغـه واړه د پرهېز لويه سنګړه
چې زما په سر ئې مينه اوړوي! (حميد)

ـــــ :- (س+ن+ګ+ړ)(اس ـ مو ـ ج ـ ړے) مورچه ـ سلته ـ څوکۍ ـ سنګر

**سنګزن** :- (س+ن+ګ+ز+ن) (پ تر ـ صف مذ ـ مو ـ ه)(وـــــ څنګزن)

**سنګسار** :- (س+ن+ګ+سا+ر)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)يوه وړه شان توره حشره (چينجے مينجے) چې د کاڼو د لاندې اوسي ـ

ـــــ :-(س+ن+ګ+سا+ر)(ف تر ـ اسي ـ مذ) (۱) په کاڼو ويشتنه ـ (۲) (اصطلاحاً) د يو مجرم په کاڼو دومره دومره ويشتنه ، چې هغه مړ شي

**سنګسارول** :- (س+ن+ګ+سا+ر+ؤ+ل)(مص)(يو مجرم) په کـاڼو ويشـتل ـ تـر هغې پورې چې مړ شي ـ دا د پخوانۍ سزا يو عامه طريقه ده ـ

**سنګسارونګ** :- (س+ن+ګ+سا+ر+ؤ+ن+ګ)(وـــــ سنګسارونه)

**سنګسارونه** :- (س+ن+ګ+سا+ر+ؤ+ن)(حمص)(مجرم) په کاڼو ويشـتنه ـ د کـاڼو په ويشتو سره مړ کونه ـ

**سنګسـاروونکے** :- (س+ن+ګ+سـا+ر+وو+ن+کے)(اس فـا ـ ج ـ کـې) پـه کـاڼو ويشتونکے ـ په کاڼو ويشتو سره مجرم وژونکے ـ

**سنګسارېدل** :- (س+ن+ګ+سا+رې+د+ل)(مص)په کاڼو ويشـتلو وژلے کېدل ـ د مجرم په کاڼو ويشتلے کېدل ـ (تر هغه چې مړ شي) ـ

**سنګسارېدنګ** :- (س+ن+ګ+سا+رې+د+ن+ګ) (وـــــ سنګسارېدنه)

**سنګسارېدنه** :- (س+ن+ګ+سا+رې+د+ن)(حمص)(د مجرم) پـه کـاڼو ويشـتلے کېدنه ـ د کاڼو په ويشتلو وژلے کېدنه ـ

**سنګسارېدونکے** :- (س+ن+ګ+سا+رې+دو+ن+کے)(اس ـ فا ـ ج ـ کې) هغـه کس چې په کاڼو ويشتلے کېږي (تر هغې پورې چې مړ شي) پـه کـاڼو ويشـتلو سره د وژلے کېدو سزا موندونکے ـ

**سنګسزۍ** :-(س+ن+ګ+س+ز+ۍ) (اس ـ مع) د مرغزانې يوه څانګه ـ چې پنې دي

**سنګسول** :-(س+ن+ګ+سو+ل)(ق ـ اس ـ مذ) يو قسم بوټے دے ـ د افغانستان مزار شريف په کمرو کښې ډېر کېږي ـ

**سنګک** :- (س+ن+ګ+ک)(ق اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د ډېر يخوالي لـه کبلـه سخت شوې جلوبات (دالونه غلې وغېره)

**سنګکه** :- (س+ن+ګ+ک)(ق ـ اس ـ مو) د زنانه ؤ مشهور مرض چې د زېږنې نه پس پيدا کېږي ـ

**سـنګل** :- (س+ن+ګ+ل)(انګ ـ صف)يواځې ـ ځـانګړے ـ يـو يواسـتوے ـ يـو وزرے ـ لونډ نا وادۀ کړے ـ

ـــــ **پلېټ** :- (پ+لې+ټ)(انګ ـ مـذ ـ ج ـ ونه)(پـه هوټـل کښـې) وړوکے يـا د يـو کس د پاره پلېټ ـ (د ډبل پلېټ" په مقابله کښې) ("پلېټ" د "پلېټ" بدل شکل دے) ـ

ـــــ **روم** :- (رو+م)(انګ تر ـ اس ـ مذ)د يوازې کس د پاره کمره ـ (پـه هوټلونـو کښې د "ډبل" په مقابله کښې)

ـــــ :- (س+ن+ګ+ل)(پ ـ اس ـ مذ) د سنګل وران شکل ـ عوام د سنګل په سنګل هم وائي ـ (وـــ سنګل)

ـــــ :- (س+ن+ګ+ل)(وـــــ ځنګل)

**پـه ـــــ وهل** :- د ځنګل په وهلو اشاره ورکول ـ

**سنګنے** :- (س+ن+ګ+نے)(صف ـ مذ ـ مو ـ نۍ) پسينه فصل ـ يا هغـه مېـره چې وروستو رارسي ـ

**سنګوپ** :-(س+ن+ګو+پ) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) په سر بازيګره ـ (چې سر په زمکه کېږدي او بيا نور بدن د سر په زور بل طرفته واړوي) ـ

**سنګوپړے** :- (س+ن+ګو+پ+ړے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ي) يو ګور بوټے دے ـ چې په دارو کښې پکار ولے شي ـ

**سنګوټے** :- (س+ن+ګو+ټے)(اس ـ مـذ ـ ج ـ ټـې) (۱) د سـوې بچـے (ق) ـ (۲) د هوسۍ بچے (ظفر) ـ

**سنګورکه** :-(س+ن+ګو+ر+ک) (ق ـ اس ـ مو ـ کې) د انګورو د ابجوش د داغ کولو خاص اسپنيزه ټوکرۍ ـ

ـــــ :-(س+ن+ګو+ر+ک)(اس ـ مو ـ ج ـ کې) (۱) ټوکرۍ ـ شکور ـ سوده ـ کهاوه ـ (۲) د اوسپنې خاص ټوکرۍ ـ

**سنګورے** :-(س+ن+ګو+رے) (ق ـ اس ـ مذ)يو ځنګلي (خودرو) بوټے ـ

**سنګوړے** :-(س+ن+ګو+ړے) (ق اس ـ مـذ ـ ج ـ ړي) د ځـناورو يـا بنـې ادم ماشوم چې غټ او غونډ مونډوي او ښکلے ښکاري ـ

**سنګويک** :- (س+ن+ګو+ي+ک)(ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ کې)يو قسم بوټے دے ـ چې پاڼې ئې غونډې وي ـ

**سنګه** :- (س+ن+ګ)(اس ـ مو ـ ج ـ ګې) (۱) سپېږمه ـ (۲) پوزه ـ

ـــــ :- (س+ن+ګ) (وـــــ څنګه)

**سنګهار** :- (س+ن+ګ+ها+ر)(اس صوت ـ مذ) شعمار ـ د غشو د ويشـتلو غونډې اواز ـ سيوهار ـ سزهار ـ

**سنګے** :- (س+ن+ګے) (اس ـ ج) (۱) د سنګه جمع ده ـ (۲) د "سنګه" اضافي او مجروري حالت ـ

ـــــ **ئې پړاخې شوې** :- پوزه ئې پلنه شوه ـ يا سپېږمې ئې اړتې شوې ـ مجازاً ځوان شو ـ د ځوانۍ عمر ته ورسېدۀ ـ

**سنګېړ** :- (س+ن+ګې+ړ)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) کانيزه زمکه ـ د کرېونه ډکه زمکه ـ

خـاورې ئې واړه مشک غبن دي
که سرائے ونورو ته سنګېړ دے! (خوشحال)

**سنګين** :- (س+ن+ګې+ن)(ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه) (۱) د کاڼي نه جوړ ـ کانيز ـ (۲) دروند ـ (۳) د دروند طبيعت او مذاج خاوند ـ (۴) مضبوط د کاڼي په شان سخت ـ نا ترسه ـ

هېڅ اثـر دې پـه سنګين خاطر ونۀ شو
که هر څو مې مصلې درپسې لنګ کړې (رحمان)

ـــــ **خاطر** :- سخت زړۀ ـ کلک زړۀ ـ ناترسه زړۀ ـ

هسې کوډې عاشقۍ راباندې وکړې
چې سنګين خاطر مې نرم شو تر موم (رحمان)

ـــــ **دل** :-(د+ل)(وـــــ سنګدل)

**سنګين** :- (س+ن+ګې+ن)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) لويه نبغه چاړۀ ـ چې د ټوپک په سر کښې ورټومبلے شي ـ

ـــــ **چړاوۀل** :- د فوځيانو اصطلاح ده ـ (وـــــ سنګين لګول)

ـــــ **لګول** :- د ټوپک په سر نګين د پاره چې کوم ځـاے جوړ شـوے وي هلته سنګين ننبلول چې د ټوپک نه د برچۍ کار هم اخستے شي ـ

**سنن** :- (سُ+ن+ن) (ع ـ اس ج) (۱) د سـنت جمـع ـ (وـــــ سـنت) (۲) د بعضـو کتابونو نوم چې پکښې د حضرت محمد مصطفٰی ﷺ د خولې وينا ګانې يا طور طريقې راجمع کړے شوې وي ـ

**سـنو** :- (س+نو)(اس ـ اس ـ مو)اصـل معنٰـی ئـې واوره ده خـو د هغـې سـپې

خوشبوداره ملهم د پاره استعمالېږي کوم چې په مخ لګولے شي ـ دمخ کريم ـ

**سنواريا** :-(س+ن+وا+ر+يا) (ه ـ سنوارنانه وتے دے)په پښتو کښې ئې استعمال نشته ـ (۱) ښکلے کول ـ اراسته کول ـ (۲) جوړول ـ سازول ـ تيارول ـ

**سنوج** :- (س+نو+ج)(ع ـ اس) د ښکار د ګڅ (کيڼ) طرف نه راتلل پخوا به فالګيرې کښې که ښکار د ګس طرف نه ښي طرف په الوت راغے ـ نو دا به سپېرۀ فال ګڼلے شو ـ څۀ حادثه پېښېدل ـ

**سنول** :- (س+ن+ؤ+ل) (مص)خوزول ـ حرکت ورکول ـ

**سنه** :- (س+ن)(ع ـ اس ـ مو)د تقويم (کيلينډر) رويه د کال شمېره يا نمره

**ـــ شمسي**:-(ش+م+سي)(اس ـ مذ) د نور (نمر) په حساب د جوړ شوي تقويم (کيلينډر) کال ـ چې په يورپ او د دنيا په ډېرو ملکونو کښې رائج دے ـ

**ـــ قمري**:-(ق+م+ري) (ق ـ م ـ ري)(اس ـ مذ)د مياشت (سپوږمۍ) په حساب د تقويم (کيلينډر) کال ـ چې په مسلمانانو کښې رائج دے ـ

**سنې** :- (س+ن+ئ)(اس ـ مو)څنې ـ انيځې ـ سوتلې ـ

**سنّي** :- (سُ+ن+ني)(ع ـ صف) په مسلمانانو کښې هغه فرقه چې اهل سنت والجماعت بللے شي ـ

راشه ګوره د بهرام د نفاق چر
ګاه سني ګاه رافغي ګهې کافر (خوشحال)

**ـــ توب**:-(تو+ب)(اس ـ مذ)د سنت والجماعت د عقيدت مسلمانانو سره تعلق لرنه

**ـــ ګلوي**:- (ګ+ل+وي)(اس ـ مو) سني توب ـ د سنت والجماعت د عقيدې مسلمانانو سره تعلق لرنه ـ

**ـــ والے**:-(وا+لے)(وـــــ ـسني توب)

ـــ:- (س+ن+ني) (ع ـ صف) (۱) لوړ ـ اوچت ـ (۲) روښانه ـ ځلېدونکے ـ

**سنياسي** :- (س+ن+يا+سي) (ه ـ اس ـ مذ ـ ج ـ سنياسيان) هندو فقير چې د دنيا نه ګوښه شوے وي ـ سنډاسي ـ

په دربار ئې سنيامي شه ورته کښېنه
تـار په تار د سر وښيتۀ ايرې مبتلے (رحمان)

**سنيار** :- (س+ن+يا+ر) (ار ـ اس ـ مذ) زرګر ـ د زرو کار کوونکے ـ

کـوټ خرڅه وي په نوم د زرو نادانان پرغلوي
شائق د کان ته د دې هسې رنګ سنيار نۀ يمه (حافظ)

**سنياري** :- (سُ+ن+يا+ري) (ه ـ اس ـ مؤ)(۱) زرګري ـ د زرو کار ـ (۲) د سرو زرو نه جوړ ـ

سرۀ لمبـه مـې له ګوګله شي چاپېره
چې سور کړے پېزوان په پوزه سنياري کا (حافظ)

**سني خېل** :- (سُ+ني+خېل)(اس ـ مع)د زرغن خېلو يوه څانګه ده ـ چې (ګلې ، ادم خېل) افريدي دي د سني خېلو بيا څانګې دا دي ، نواز خېل ، نصير خېل ، او نذير خېل ـ

ـــ:- (سِ/سي+ني+خېل)(اس مع) د ابراهيم خېلو يوه وړوکې څانګه ده چې (استانې ، بشي خېل ، علي زئ) محسود دي ـ

**سنے تهوريم** :- (س+نے+تهو+ري+ي+م)(انګ ـ اس ـ مذ)د صحت مونډلو د پاره ځاے صحت ګاه روغتون ـ (عموماً د هغې صحت افزا مقام خاص هسپتال ته وائي ـ چې پکښې د سل دق (ټي ـ بي) مريضان ساتلے شي)

**سنېدل** :- (س+ني+د+ل)(مص)خوځېدل ـ جنبش خوړل ـ حرکت کول ـ

**سنيزي** :- (س+ني+ز+ي)(اس ـ مع) د کانوېزو يوه څانګه ده ـ چې (کتيه ګرام ، تته) بيتني دي ـ

**ـــ (ددغه)** :-(اس ـ مع)د کيسو يوه څانګه دي ـ چې(وروکي ، د نام ،دهنا) بيتني دي

**سنے ګاګ** :-(س+نے+ګا+ګ)(يو ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د يهوديانو عبادت خانه ـ

**سنيل** :- (اوريا) (س+نے+ل)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)هغه لرګے چې غله د هغې په ذريعه په قلا وغېره خيژي (فارسي:يکه چوب)

**سو** :- (سُو) (ق ـ پ صف)(۱) زخمي ،ژوبل ـ (۲) مانده ـ ډنګر ـ

**ـــ کول**:- زخمي کول ـ (د قندهار په محاوره کښې) ـ

اے چې لاڤـــې د رنځـور درغيد وکړے
د خپل کلي د رنځور روغ کړه ما به سو کړې (خوشحال)

ـــ:- (سُو) (ف ـ اس ـ مذ)طرف ـ خوا ـ اړخ ـ پله ـ عموماً په "چارسو" کښې استعمالېږي څلور اړخونه ـ چوک چې څلور طرفه ترې لارې يا سړکونه تـه روا نېږي

ـــ:- (سو) (وـــــڅو)

ـــ:- (سَو) (وـــــڅو)

ـــ:- (سُو) (ع ـ صف) بد خراب ـ عموماً د فارسي هغو مرکباتو کښې استعمالېږي کوم چې ځنې وخت په پښتو کښې هم ليدلے شي ـ لـه سوء ـ اتفاق سو خلق ـ سؤ مذاج ، سؤ ادب وغېره ـ

**سوا** :- (س+وا) (ع ـ حرف استثناء) (۱) سـېوا ـ عـلاوه ـ بغېر ـ بجز ـ بې (۲) زياتي ـ علاوه ـ (۳) سود ـ ربا ـ (۴) لرې ـ جدا ـ

**ـــ ددې نه**:- بغېر دې نه ـ علاوه ددې نه ـ ددې نه زياتي ـ سيوا ددې نه ـ

**ـــ کول**:- سيوا کول ـ زياتول ـ ورزياتول ـ

**ـــ کېدل**:- (۱) زياتي کېدل ـ د خاص شمېر يا مقدار نه زياتېده ـ سيوا کېدل (۲) لرې کېدل ـ

چې مې ستا کوځه ماوا شۀ
غـــم زما له زړۀ سوا شۀ (خوشحال)

**ـــ ګڼل**:- زيات ګڼل ـ

د نهـــار بيـــــاض سوا ګڼي دليله
په رڼا وړخ باندې عېب د تور ظلمت ړدي (حافظ)

**ـــ والے**:- (وا+لے)(اس ـ مذ ـ ج ـ والي)زياتوالے ـ زياتوب ـ سېوا والے ـ

ـــ:- (سُ+وا)(ق ـ اس ـ مو)سبزي ـ چې په هندئ کښې ورتـه سويا وائـي ـ د شينکي يو قسم دے ـ

ـــ:- (س/سو+وا)(صف)غټ ـ لويه ـ

**ـــ بېره**:-(بې+ر)(اس ـ مو ـ ج ـ بېرے) د بېرو يو خاص قسم ـ چې په شکل لکه د کجورې اوږدې وي ـ

**سوابی** :- (س+وا+ب+ئ)(اس ـ مع) د مردان په ضلع کښې د يولې کلي نوم عموماً صوابی ليکلې شي ـ

**سوات** :- (س+وا+ت) (اس ـ مع) د يـو سـيند اولنے نـوم ـ پخوانو وختونو کښې ددې سيند دا نومونه ياد شوي دي ـ سوي (درې زره کاله پخوا) سوائش (درې سوه قام کښې) ستواستو ، په رګ وېد کښې (څۀ درې زره کاله پخوا) ـ

ـــ:- (س+وا+ت)(اس ـ مع) د يوې غرئيزې علاقې نوم دے چې د پېښور ضلعې نه قطب طرف دے د خېلو شنو غرونو سيندونو وغېره د ښکلا په وجه ډېر مشهور دے ـ پخوا يو رياست ؤ ـ اوس د پاکستان يوه ضلع ده ـ پخوا پکښې "سواتي"خلق اباد وو ـ اوس پکښې يوسفزي اباد دي ـ

**د ـــــ اخوند صاحب**:ـ د سوات يو لوړ مجاهد نوم ئې ملا عبدالغفور ؤ ـ له قامه صافي ـ پښتون ؤ ـ د سوات په چپړو نومي کلي کښې په ۱۲۱۳ ۱۷۹۴ ه کښې زېږېدلے ؤ ـ ۱۸۳۵ کښې سيدو ته راغے او د پښتون مذهبي پېشوا اوګرځېدو د دوي په مريدانو کښې د هډے صاحب د مانکي پير صاحب د کربوغې ملا صاحب او داسې نور لوئې لوئې هستۍ شاملې دي ـ پېرنګيانو سره ئې ډېرې غزاګانې کړي دي ـ ۱۶۹۵ ۱۸۷۷ کښې په سيدو کښې وفات شو ـ هم هلته ئې مزار دے

**سواتي** :- (س+وا+تي)(اس ـ مع) دا د سوات د ملک پخواني او اصل اوسېدونکي دي ـ هر کله چې يوسف زو په شپاړسمه او په اولسمه پېړۍ (عيسوي) کښې د سوات په سيمه قبضه وکړه ـ نو دا خلق د اباسين نه پورې وتل ـ او د هزارې ضلعې اقطبس سيمې کښې ميشته شول ـ ځينې شترقين وائي چې دا خلق ډېر پخوا د هند نه سوات ته تلي وو او هلته اباد شوې وو ـ خو دا خلق پخلپله ځان ته پښتانهٔ وائي ـ خو دا يوسفزو نه اګاهو د سوات سيمې ته تلي او هلته اباد شوي وو خو دا دواړه خبرې تحقيق غواړي ـ د دې اولس لوې لوې قبيلې چې په مختلفو علاقو اوسي دادي ـ جهانګيري ، ارګشال ، کلکان ، اسماعيلي ، مير خان سر خېلي ، سليماني ، مندراوي ، پنج غول ، مداخېلد ، خان خېل ، پنج ميرال ، ډوډال ، پنجګول ، اشلور ، کلکان ، بيرور ، واروجئ ، کوچيلئ ، جدور ، سُلمه خېل ، ازنالي وغېره ـ

**ـــــ (ددغه)** :ـ(اس مع)دا په اصل کښې يوسفزي دي ـ د يوسفزو د اکوزو کوم خلق چې په سوات کښې اباد دي عموماً د سواتو په نامه بللے شي ـ

**سواتے** :- (س+وا+تے)د سوات اوسېدونکے ـ

**سواحل** :- (س+وا+ح+ل)(اس ـ ج)د ساحل جمع ـ غاړې ـ څنډې ـ ژۍ (جۍ) ـ

**سواد** :- (س+وا+د) (ع ـ اس ـ ج ـ ونه)(۱) توروالے ـ سياهي ـ تور (رنګ) ـ

اغينا بـــه په خپل بخل اشقيا وي
محشر به ئې اظهر د مخ سواد شي (حافظ)

**سواد اعظم** :- (س+وا+د+ا+ع+ظ+م)(عف تر)(۱) لوے شمېر ـ لوے تعداد (د خلقو) نوے اکثريت ـ د يو ملک اکثر خلق (۲) (ع) لوې ښار ، خصوصاً مکه معظمه ـ

**سوار** :- (س+وا+ر)(اس ـ مع)د خروطور يا خروټرو يوه څانګه ده ـ "زرګون" پښتانهٔ دي ـ (استوږنه:لورالائي)

**ـــــ**:ـ (س+وا+ر) (ف ـ اس ـ مذ ـ ج ـ سوارهٔ)سوارات سور (پلي په مقابله کښې) په پښتو کښې عموماً د فارسۍ ځينې مرکباتو کښې راځي ـ لکه شهسوار ـ

**ـــــ کار**:ـ(ـکا+ر) (اس ـ مذ ـ ج ـ ان) د سورلئ کار کوونکے ـ د اسونو د سورلۍ کار سره متعلق ـ

**سواراني** :-(س+وا+را+ني)(اس ـ مع)د خدرانو يوه څانګه ده ـ "جعفر" پښتانهٔ دي (استوږنه: لورالائي)

**سوارلسم** :-(س+وا+ر+ل+س+م)(و ـــــ څوارلسم)

**سوارهٔ** :- (س+وا+ر) (اس ـ جم)هغه پټے چې غنم ئې لو شوي وي وړ ـ

**ـــــ**:ـ (س+وا+ر) (اس ـ ج)د سر جمع ـ سپارهٔ ـ (و ـــــ سور)

**ـــــ پلي او**:ـ (پ+لي+ا+و)(پ تر)(۱) پياده خلق او سوارهٔ خلق ـ (۲) د فوځ پياده سپاهيان او سوارهٔ سپاهيان مراد ټول فوځ يا لښکر ـ

**ـــــ زغلول**:- د خپل طرفه پوره کوښښ کول ـ

**ـــــ**:ـ (س+وا+ر) (ف ـ اس ـ مو ـ ج ـ رې)د روزه ناړئ ـ خريز ـ وړ ـ (د غنمو د بوټي لاندينۍ برخه)

**سواري** :- (س+وا+ري)(اس ـ مو) سورلي ـ په اس وغېره سورېدنه ـ

**ـــــ کول**:ـسواري کول ـ په اس وغېره سورېدل ـ

**سواست** :- (س+وا+س+ت) (فعل)د شول يا سول مصدر نه د ماضي صيغه ـ شوئي ـ

**سواقي** :- (ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ و:سواق)(۱) واړهٔ لښتي چې په پټي کښې د اوبهٔ خور د پاره جوړ کړے شوے وي ـ (۲) لښتے ـ وله (په پښتو کښې استعمال شوے دے) ـ

د جدائۍ له تا وه مړاوې کِشت به بيا نازه کا
کـــــه پرې د وصل سواقِي د ماخبان راشي! (حافظ)

**سواکن** :- (س+وا+ک+ن)(ع ـ ج)د ساکن جمع ده ـ اوسېدونکي ـ

**سواکۍ** :- (س+وا+ک+ۍ)(اس مع)د لنډي خېلو يوه څانګه ده ـ چې (لوهانه پاوندي ، سډن خېل ، خوائيدادي ، ملک شاهي ، ايمل خېل ، بهلول زئ) محسود دي ـ

**سوال** :- (س+وا+ل)(ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه/سوالات)(۱) تپوس پوښتنه ـ (۲) درخواست غوښتنه ـ د سوال په اوبو جرندې نهٔ ګرځي ـ (متل) (۳) خير خيرات ـ غوښتنه ـ ګدائي ـ (۴) د رياضۍ يا د حساب وغېره سوال ـ طالبعلمان هغه حل کړي او درست جواب ئې راوباسي ـ (۵) منت کول ـ په منت او عاجزئ سره څهٔ غوښتنه کول

**ـــــ پورته کول**:ـ اعتراض کول ـ په څهٔ مسئله کښې د اعتراض يا وضاحت د پاره نوې خبرې راوستل ـ

**ـــــ پوره کول**:ـ غوښتنه پوره کول ـ څوک چې څهٔ وغواړي هغه ورکول ـ

**ـــــ جواب**:- (ج+وا+ب) (۱) سوال او ددغې سوال جواب ـ پوښتنه او ددغې پوښنې حل ـ (۲) پېغام ـ (۳) حساب کتاب ـ

**ـــــ جواب کول**:ـ پېغام استول ـ خبر استول ـ

**ـــــ حل کول**:-(۱) د رياضۍ د يو سوال جواب راويستل ـ (۲) مسئله حل کول ـ

**ـــــ درسوال**:ـ (۱) د يو سوال د حل کېدو په دوران کښې يو بل سوال راپېدا کېدل ـ (۲) د جرحې سوالونه ـ

**ـــــ رد کول**:ـ د درخواست نه منل ـ

**ـــــ کول**:ـ(۱) درخوست کول ـ التجا کول ـ منت زاري کول ـ (۲) خير غوښتل ـ ګدائي کول ـ (۳) تپوس کول ـ پښتنه کول ـ

**ـــــ ګر**:ـ(ـګ+ر)(اس ـ مذ ـ ج ـ ان ـ مو ـ ګره) سوال کوونکے ـ خواست کوونکے ـ فقير ـ ګدا ګر ـ

**ـــــ ګري**:ـ (ـګ+ري)(اس ـ مو)(۱) سوال کؤنه ـ ګدائي ـ فقير ـ (۲) د سوال جمع هم ده ـ

**ـــــ ګرے**:ـ (ګ+رے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ګري ، مو ـ ګره) ج ـ مو ـ ګرے) ښـځه سوال کوونکې ، فقيره ، پقيره ، ګداګره ـ

**د ـــــ په اوبو جرنده (ژرنده) ګرځول**:ـ بې د څهٔ مال تاوانه څهٔ غټ کار کول غوښتل د بل نه په غوښته څهٔ لوې کار چلول ـ عموماً په نفي کښې استعمالېږي يعني د سوال په اوبو ژرنده نهٔ ګرځي ـ

**سوالات** :- (س+وا+لا+ت)(ق ـ اس)د سوالات جمع ـ سوالونه ـ

**ـــــ جرح**:ـ (ـج+ر+ح)(عف تر ، اس ـ ج) هغه سوالونه چې عدالت کښې د يو وکيل وغېره د طرفه د مخالف فريق په ګوهانو کولے شي ـ

**ـــــ تحريري**:ـ (ن+خ+ري+ري) د امتحان هغه سوالونه چې په پرچه کښې ليکلے شوي وي د ليک په ذريعه جمع تفريق وغېره کولے او جواب را ايستلے شي ـ

**ـــــ زباني**:ـ (ز+با+ني) (۱) هغه سوالونه چې په امتحان کښې په پرچه ليکلے شوي نهٔ وي او امتحن ئې په ژبه (جبه) تپوسونه کوي ـ (۲) د امتحان هغه

لیکلې شوې سوالونه چې امیدوار ئې جواب په خپل سوچ راوباسي ـ جمع ، تفریق ، ضرب تقسیم په یادداشت کښې کوي ـ په کاغذ وغیره د لیکلو اجازت نهٔ وي ـ

**سوالاتو** :- (س+وا+لا+تو)
"سوالات" اضافي یا مجروري صورت لکه د سوالاتو ـــ ـ

**د ـــ وقفه**:ـ (و+ق+ف)په اسمبلۍ یا د کانګریس په اجلاس کښې هغه وخت چې ممبرانو لـه د سوالونو کولو د پاره ورکړے کېږي ـ د سوالونو د پاره مقرر شوے وخت ـ

**سـوالي** :- (س+وا+لـي)(پ ـ صـف)(۱) پـه سـوال اخسـتے شـوے عارضـي ـ (۲) سوال کوونکے ـ سوال ګر ـ

**سوالے** :- (س+وا+لے)(اس ـ مذ ـ ج ـ لي)(۱) جړ کانړے ـ جونګړے ـ (۲) سود خور

**سوان** :- (س/سو+وا+ن)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) سوهان ـ هغه آله چې د لرګي یا د وسپنې د څيز مخ پرې هوارولے شي ـ چوسار ـ

**ـــ کار**:ـ(کا+ر)(اس ـ مذ ـ ج ـ ان)(۱) هغه کس چې سوان یا سوهان سره کار کوي صفا کوونکے یا صېقل کوونکے ـ (۲) اسان کار ـ سهل کار ـ

**سوان** :- (س+وا+ن) (صف ـ مذ ـ مو ـ ه)آسان ـ سهل ـ سویت ـ

**سوانح** :- (س+وا+ن+ح)(ع ـ ج)د سانحه جمع ده ـ حادثې ـ واقعات ـ پېښې ـ

**ـــ عُمري**:ـ(عُ+م+ري) (ع تـر ، اس ، مـو ، ج ـ انـې)(۱) د چـا پـه ژونـد کښـې پېښېدونکي واقعات ـ (۲) هغه کتاب چې پکښې د چا د ژوند ټول حالات پېښې او حادثې وغیره لیکلي شوې وي ـ

**ـــــ نګار**:ـ(ن+ګا+ر)(عف تـر ـ اس ـ مـذ ـ ج ـ ان ـ مـو ـ ه)(۱) د ژونـد حـالات او پېښې لیکوونکے ـ (۲) د یو اخبار واقعه نګار د اخبار د پاره د واقعاتو او حادثاتو بیـان لیکـونکے ـ(۳) د یـو بـل باچا یا بـل کوم ځـاے سرې داسې مـلازم (یـا دوست ملګرے) چې هغـه ددغې شخصیت پـه ژونـد کښـې پېښېدونکي واقعات پېښېدو سره سره په لیک کښې راولي ـ

**سوانګ** :- (س+وا+ن+ګ)(ق ـ اس ـ مذ)یو قسم حلوا ده ـ چې د اوړهٔ کړو غنمو نه (عموماً په ژمي کښې) جوړولے شي ـ سوانګ او سمنک هم ورته وائي ـ

**سوانګ** :- (س+وا+ن+ګ)(ه ـ اس ـ مـذ ـ ج ـ ونـه)(۱) نقـل ـ اداکـاري ـ ایکټنـګ ـ ایکټـي ـ جامې(اوشکل) بدلونـه ـ (۲) شـعبده بـازي ـ د دهوکې نمائش ـ (۳) پیروي ـ اقتداء ـ

**ـــ کول**:ـد چا پیروي کول ـ چاپسې تلل ـ

**سوانګتوب** :- (س+وا+ن+ګ+تو+ب)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) سانګلوي ـ پیروي ـ متابعت ـ

**سوانګلوي** :- (س+وا+ن+ګ+ل+وي)(اس ـ مو)سوانګتوب ـ پیروي ـ متابعت

**سوانګلے** :- (س+وا+ن+ګ+لے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ي) بادار ـ حکمران ـ

**سوانګے** :- (س+وا+ن+ګے) (اس ـ مذ ـ ج ـ ګي ، مو ـ ګې) تابع ـ پیرو ـ پیروي کوونکے ـ

ـــ:ـ (س+وا+ن+ګے) (اس ـ مـذ ـ ج ـ ګي)(۱) پیشوا ـ سوانګلے ـ بیامیا (۲) د مانځهٔ امام ـ

ـــ:ـ (س+وا+ن+ګے)(ق ـ اس ـ مـذ ـ ج ـ ګي)ادا کـار ـ ایکټر ـ شعبده ښوونکے ـ (د هندي د سوانګ نه اخستے شوے دے)

**سوانول** :-(س+وا+ن+ؤ+ل) (مص)اسانول ـ سهل کول ـ

**سوانه** :- (س+وا+ن) (اس ـ مو ـ ج ـ نې)آسانتیا ـ سهولت ـ سویت ـ

**سواني** :-(س+وا+ني)(اس ـ مو ـ ج ـ نۍ)اساني ـ اسانتیا ـ سهولت ـ

**سوانې کوونکے** :- (ک+وو+ن+کے)(اس فا ـ مذ ـ ج ـ کي) اسانه وونکے ـ

**سوانېدل** :- (س+وا+نې+د+ل)(مص)اسانېدل ـ سهل کېدل ـ

**سوائي** :- (اـ ق) (س+وا+ئي)(و ـــ سوايي)

**سوايي** :- (س+وا+يي)

**سوائ** :- (س+وا+ئ)(اس ـ مو)(۱) زیت والے ـ زیاتے ـ زیاتوب ـ (۲) سود ـ ربا ـ (عموماً "سود" سره یو ځاے راځي لکه په سود او په سواي روپې واخستې (ق)

**ـــ اخستل**:ـ(۱) د حق نه زیات (څیز) اخستل ـ (۲) سود اخستل ـ

**سوائې** :- (س+وا+ئې)(حرف استثناء)(و ـــ سوا)

**سوائي** :- (س+وا+ئ) (فعـل)د سـول (شـول) مصـدر تـه فعـل ده پـه معنـی د "شوي" یا شئ ـ لکه ددې خبرې نه انکار نه سي کولائ! (رق) واحد ئې "سي" دے ـ چې د "شي" مرادف دے ـ

**سوب** :- (س+و+ب)(اس ـ مـذ ـ ج ـ ونه)(۱) سبب ـ باعث ـ وجه ـ (۲) ذریعه ـ وسیله (۳) اندېښنه ـ اندیشه ـ فکر (ق)

**ـــ کول**:ـ (۱) باعث کـول ـ سبب ګرځـول ـ (۲) ذریعـه پېـدا کـول ـ وسـیله پیداکول ـ چاره کول ـ (۳) اندېښنه کول ـ فکر کول ـ (ق)

**ـــ کېدل**:ـ (۱) باعث ګرځېدل ـ وجه جوړېدل ـ (۲) ذریعه پېدا کېدل ـ چاره جوړېدل ـ وسیله جوړېدل ـ

**ـــ ګیر**:ـ(ګي+ر)سوب کوونکے ـ وسیله یا ذریعه را ایستونکے د ضرورت په وخت امداد کوونکے ـ لکه: سوب ګیر خداے دے!

**سُوب** :- (س+و+ب) (ق ـ صف)حاضر ـ موجود ـ منتظر ـ

**ـــ کول**:ـ حاضر کول ـ پیش کول ـ راستل ـ

**ـــ کېدل**:ـ حاضرېدل ـ پیش کېدل ـ راتلل ـ

**ـــ کېښناستل**:ـ حاضر او په انتظار کښې کېښناستل ـ

**سَوَب** :- (س/و+ب) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) چاره ـ علاج ـ

**ـــ کول**:ـ چاره کول ـ علاج کول ـ

**ـــ کېدل**:ـ چاره کېدل ـ علاج کېدل ـ

**سوباړے** :- (صو+با+ړے) (اس ـ مذ ـ ج ـ ي) هغه وړوکے شان پلن لرګے چې زنانه پرې د وینځلو په وخت جامې ټکوي ـ څوباړے ـ د جامو ټکولو لرګے ـ

**سوبت** :- (سو+ب+ت) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د خوراک څښاک محفل چې باران دوستان پکښې راټول شي ـ پک نک ـ د طالبانو سیله (اق) (د صحبت بدل شکل دے)

**سوبله**:- (س+ب+ل) (ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ لې) سل پښېزه ـ ځنځه ـ ثوبکه ـ

**سوبمن** :- (سو+ب+م+ن)(پ صف ـ مو ـ ه) سوبه موندونکے ـ کامیاب بریالے فتحیاب ـ

**سوبه** :- (س+ب) (اس ـ مـو ـ ج ـ بې)(۱) خـواهش ـ ارزو ـ تمنا ـ (۲) کامیابي (۳) فتح ـ برے ـ (۴) ارام ـ راحـت (پـه دې معنـی کښـې ئـې اصل "سوده" دے)

**ـــ کول**:ـ(۱) فتح موندل ـ پرے موندل ـ (۲) خواهش پوره کول ـ ارمان رژول ـ (رجؤل)(۳) کامیابېدل ـ

**ـــ کېدل**:ـ (۱) فتح کېدل ـ برے کېدل ـ (۲) کامیابي حاصلېدل ـ

(1) خواهش ، ارمان پوره کېدل ـ

اوس به کوم ارمان کوم سوبه مې وشوه
چـــې رقیب د یار له دره آواره شه (خوشحال)

**ـــ من**:ـ(م+ن)

**ـــ مند**:ـ(م+ن+د)(صف ـ مذ ـ ج ـ ه)فتح یاب ـ کامیاب ـ فتحمند ـ

**ـــ مندي**:ـ (م+ن+دي)

ـــــ **مني**:-(م+ني)(اس - مو)فتحيابي - برے موندنه - کاميابي -

ـــــ **وړل**:- (و ـــــ سوبه کول)

**سوبه** :- (سو+ب) (قندهار)(ق - اس - مو)هغه نرم پټے چې په سپرلي کښې شين وي - ليسه(صافي) مښکه (ځدران)

**سوپ** :- (س+پ)(ق - اس - مذ - ج - ونه)(۱) درشل - دهليز - (۲) صوف مشهوره توره کپړه -

ـــــ:- (سوُ+پ)(انگ - اس - مذ)ښورا - يخني -

ـــــ:- (سُو+پ)(اس)(۱) ټنګوړے - تنګه تيارۀ کوټه - (۲) درشل - دهليز

ـــــ:- (سو+پ) (انگ - اس - مذ)صابون -

**سوپارے** :- (سُ+و+پا+رے)(اس - مذ)(۱) يو قسم کپړه چې مختلف رنګونه لري (۲) درشل دهليز - سوپ - ډيلر - کپړه چې مختلف رنګونه لري -

**سوپ خېل** :- (سو+پ+خېل)(اس مع)د جان بيګ خېلو يوه څانګه ده - چې (علي خان خېل ، سرکي خېل ، مده خېل ، ابراهيم خېل ، التمان زئ ، درويش خېل) وزير دي -

**سوپر** :- (سُو+پ+ر) (انگ - صف) اوچت - لوړ - بره - بالا -

ـــــ **پاور**:- پا+و+ر) (انگ تر - اس) لوي طاقت - بالاتر طاقت - (نن صبا امريکه کښې او روس په دنيا کښې سوپر پاورنه ګڼلے شي)

ـــــ **مين**:- (مي+ن) (انگ تر - اس - مذ - ج - ان) د عامو انسانانونه اوچت او اعلى انسان کامل انسان - فائق - بني ادم -

**سونک يا سانک** :- (سو/سا+ن+ک) (انگ - صف) د اواز صفت دے - چې هغه د دومره زياتو چپو وي - چې اورېدے نۀ شي -

ـــــ **الوتکه(جهاز)** :-(اس - مو - (مذ) ج - کے - (ونه) هغه هوائي جهاز چې د اواز د رفتار نه تېز الوزي - څکه د راتلو په وخت کښې اواز نۀ شي اورېدے -

ـــــ **اکسائيډ**:- (سو+پ+ر+ا+ک+سا+ئ+ډ) انگ - جم) يو کيميا وي څيري څيز - د اعلى طاقت او کسائيډ -

**سوپره** :- (سو+پ+ر (اس - مع) په اصل کښې دا د پښتو او د بلوچو يوه ګډ وډه قبيله ده پښتانۀ پکښې دومره (کاکړ)بللے شي - د سوپره ؤ لوې څانګې دادي ! ادم زئ ،نوتک (بلوچ دي) او سومرزئ ،مورازئ - او دين زئ ، جارزئ ، او شمباوال (پښتانۀ دي) -

ـــــ:(سُو+پ+ر) (اس - مو - ج - رې) کُونه ، مقعده ، کُون -

**سوپړے** :- (سُو+پ+ړے)(مو - صف - مذ)(۱) کوني - (۲) نامرد - بې غېرته - بې کاره - (۳) رزيل او ادنٰى -

ځان د پاره سبځي هندوګي
چې ئې همره همت نه وي نور سپرے دے (خوشحال)

**سوپه** :- (سُو+پ)(اس - مو - ج - پې)د غلو ډېرکے - سُوته -

**سوپلے** :- (سُو+پ+لے) (ق - اس - مذ) سپين نرم کاڼے -

**سوپی** :- (سُو+پ+ی) (اس - مو) د بيزوګانو يو قسم چې بني ادم سره ډېره مشابهت لري - د لويو شادوګانو (ميمون) يو قسم -

**سوپي** :- (س+پي) (و ـــ صوفي)

**سوپے** :- (س+پے) (اس - مذ - ج - پي)بيزو - شادو -

**سوت** :- (س+ؤ+ت) (اس - مذ) څۀ څيز په دفتر کښې درج کول - (اصل ئې غالباً چې دعربي مثبت دے)

ـــــ **کوونکے** :- ثابت کوونکے - ثابته وونکے - سوتوونکے -

**سوتر** :- (سو+ت+ر) (ه - اس - مذ) د سپڼ سونه جوړ شوے تار هغه مضبوط سپړ سينر تار کوم چې معماران د خښتو د قط د نبغ ساتلو د پاره پکار وي -

**سوتشوے** :- (رق) هغه چې مثبت شوے وي - مثبت -

**سوتل** :- (س+ت+ل) (و ـــ ساتل)

**سوتلے** :- (سو+ت+ل+ے) (ه - اس - مو) د منو جوړ شوے غټ يا نرے تار چې بوجي - پرې ګنډلے شي - يا وارۀ څيزونه پرې تړلے شي - (هند کو: سوتري)

**سوتڼ**:- (سو+ت+ن+ړ) (ق - اس - مذ)(۱) هغه سپے چې په بوي پوهېږي بوي وهونکے سپے - سولند څومن - هغه سپے چې د تفتيش د پاره پکارېږي - (۲) (تحقيراً) حرصي سړے - سپي خويه سړے چې خوراک وغېره پسې ګرځي -

ـــــ **وهل**:- بوي وهل - په بوي پسې تلل - (د غلا وغېره) سراغ لګول -

ـــــ:- (سو+ت+ن+ړ)(ه - اس - مذ) پرتوګ (د هند کو د "ستهڼ" بدل شکل دے - عام نۀ استعمالېږي په متل کښې راغلے دے) - سنه ، کوښے په پښو! (متل) -

**سوتي** :- (سو+تي)(ه - صف)د "سوت" يعني د سپښسوسونه جوړ شوے (کپړه) - سپښسينه -

**سوټ** :- (س+و+ټ)(ق - اس - مذ - ج - ان)د څيزونو حفاظت کوونکے - محافظ -

**سوټ** :- (سو+ټ)(انگ - اس - مذ - ج - ونه) (۱) جوړه دوه څيزونه چې د يو بل د پاره ضروري وي لکه جامو سوټ يعني قميص او پرتوګ - (۲) کوټ او پتلون - (۳) مناسب موزون -

ـــــ **بوټ**:-(بو+ټ) (۱) فالج وهلے سړے - د لاسو پښو نه شل شوے سړے - چې راغونډ شوے وي - (۲) هغه کس چې لاس و پښې ئې تړلې شوې وي -

ـــــ **تړل**:-(۱) د لاسو پښو نه داسې تړل - چې راغونډ شي - او حرکت نۀ شي کولے - (۲) د لاسو پښو نه کلک کلک تړل -

ـــــ **کول**:- مناسبت کول - موزون "بودل" جوړېدل - ښۀ سنګارېدل -

ـــــ **کېس**:- (کے+س)(انگ - اس - مذ - ج - ونه) (۱) هغه د څرمنې (يا د وسپنې) بکس چې پکښې د جامو سوټ کښېښودے شي - (۲) وړوکے بکس -

ـــــ **د شپې**:- هغه جامې چې د شپې اغوستے شي -

**سوټاوڼ** :- (سو+ټا+ؤ+ن+ړ) (سف مذ - مو - ړه)(۱) ډېر غل کوونکے - (۲) يرندونکے - تړن - ډرن - (۳) بې همته - هيڅکاره - بې کاره -

**سوټائے** :- (سو+ټا+ئے)(ه - اس - ج - سرټې) کوتک - لوړ - (اصلاً دا لفظ په هندکو "سوټه" دے غټ کوتک ته وائي د لاس لښتے ته سوټي وائي) قصه کوه ، خداے د پاره ، سوټائے وه د ورور د پاره (متل)

**سوټ بوټ** :- (سُو+ټ+بُو+ټ)(صف - مذ - مو - سوټه بوټه) خفه مرور - په غصه کښې چې په خوله څۀ نۀ وائي خو د مخ نه ئې غصه او خفګان څرګند وي -

ـــــ **کښېناستل**:- (۱) خفه او مرور کښېناستل - (۲) په غصه او قهر کښې کښېناستل - (خصوصاً په داسې حالت کښې چې په خوله څۀ نۀ وائي خو دا غصه قهر او خفګان ئې د مخ او د حرکاتو څرګندوي)

ـــــ **کېدل**:- (و ـــ سوټ بوټ کښېناستل)

**سوټ يا ايسوټ خېل** :- (سُو+ټ/ي+سو+ټ/خېل)(اس - مع) د لوهاني پاوندوو د ميا خېلو يو ښاخ دے - د سوټ خېلو څانګې دا دي - بلوچ خېل ، اکاخېل ، يا سني اوسيد خېل -

**سوټه بوټه** :- (سُو+ټ+ډ+بُو+ټ+ډ)(صف) هغه سړے چې سوټ اغوستے وي او بوټان ئې په پښو کړي وي - مجازاً - انګرېزي يا يورپين جامه ئې اغوستې - په سوټ او بوټ کښې -

**سوټزرلينډ** :- (س+و+ټ+ز+ر+لے+ن+ډ)(اس ـ مع)د يورپ په مينځ کښې يو ملک

**سوټ مار** :- (سُو+ټ+ما+ر)(وـــــ سوټاڼ)

**ـــــ** :- (سو+ټ+ما+ر)(اس ـ مذ ـ مو ـ ه)د منياري ځيزونه خرڅوونکے ـ هغه بنجارے چې کلي په کلي ګرځي او سودا خرڅوي ـ

**سوټک** :- (سو+ټ+ک)(اس ـ مذ ـ ح ـ ونه)ستک ـ د لوهارانو لوې ستک ـ پلک (اصل ئې ځټک دے)

**سوټکه** :- (سُو+ټ+ک)(ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ کې)د جوارو وړے ـ

**سوټکے** :- (سو+ټ+کے)(اس ـ مذ ـ ج ـ کي)(د سوټک تصغير دے) وړوکے ځټک ستکے ـ

**سوټکے** :- (سُو+ټ+کے)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ کي)(۱) يو قسم ازغنه (اغزنه) ګياه ده ـ (۲) د ونو يا قسم ـ (۳) د ريښمو د تار نقش ـ (۴) ځلے ـ هغه نشان چې د ځۀ ځائے پوله يا حد ښکاره کوي ـ

**سوټه** :- (سو+ټ)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ټې)د جوارو هغه وړے چې په خپلو پړدو کښې پټ وي ـ توکه ـ (هندکو "سټه") ټکور ـ د جوارو د وږي مېنځ چې داني ترې رجولے شوې وي ـ

**ـــــ** :- (سُو+ټه)(اس ـ مؤ ـ ج ـ سُوټې)(۱) دروغژن خوري لکه سپے د غُلو سوټه ـ (۲) د سوټې په شان پروت ځيز ـ

**سوټ لمې** :-(سو+ټ+ل+مې) (اس ـ مذ ـ ج ـ لمي)(۱) ناراسته او لټ ځناور ـ (۲) مجازاً ـ سست او ناراسته سړے ، کاهل ـ

**سوټې** :- (سو+ټ+ې)(اس ـ مو)د سوټے ، تانيث ـ د لاس وړوکے لرګے ـ د لاس لښته ـ همسا ـ

**سوټے** :- (سو+ټے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ټې) (۱) س لاس غټ لرګے (چې تاؤ کړے لاستے نۀ لري)(۲) هر غټ او لنډ لرګے ـ (۳) (مجازاً) غيڼ ـ د سړي عضو تناسل ـ (۴) غټ پټ ـ بيکاره سړے ـ (طنزاً)(۵) (ق) چقمان

**سوټيبل** :- (سو+ټي+ب+ل) (انګ ـ صف)مناسب ـ موزون ـ لائق ـ

**سوجي** :- (سو+جي)(اس ـ مو)هغه مشهور دانه وان اوړۀ چې د غنمو (د مغز) نه جوړولے شي ـ او حلوا ترې پخېږي ـ

**ـــــ حلوا**:-(ح+ل+وا)هغه حلوا چې د سوجي نه جوړه شي ـ

**سوځل** :- (س+(د) ز+ل)(يا س+و ـ)(مص)سوځول ـ سوځول ـ

**سوځلے** :- (س+و+(د)ز+لے) (يا سو+(د)+ز+لے)(اس مف ـ ج ـ لي) سوځېدلے ـ سوخته شوے ـ

**سوځند** :- (سو+(د)ز+ن+د) (س+و)(صف ، مذ ، مو ـ ه)(۱) سوځوونکے (۲) سوځېدونکے

**سوځنګ** :- (سو+(د)ز+ن+ګ) (س+و)(وـــــ سوځنه)

**سځنه** :- (سو+(د)ز+ن) (يا ـ س+و)(حمص)سوځېدنه ـ سوځونه ـ سوخته کېدنه ـ سوخته کونه ـ

**سوځول** :- (س+و+(د)ز+ؤ+ل)(مص)(۱) په اور باندې اچول ـ سوځتن ـ سوخته کول (۲) د چا په مخکښې داسې کار کول ـ چې هغۀ له پرې غصه او تاؤ ورځي ـ

**سوځونکے** :-(سو+د+ز+وو+ن+کے) (اس فا ـ ج ـ کي) (۱) سوخته کوونکے ـ سوزان ـ سوځوونکے ـ (۲) په حسد کښې اچوونکے ـ

**سوځولے** :- (س+و+(د)ز+ؤ+لے)(اس ـ مف ـ ج ـ لي) (۱) سوخته په اور کښې اچولے ـ سوځولے ـ (۲) په حسد کښې اچولے ـ

**سوځے** :- (رق) (س+و+(د)ز+ے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ي)سوزاک ـ مشهور مرض ـ

**سوځېدل** :-(س+و+(د)زې+د+ل)(مص)(۱) په اور کښې اچولے کېدل ـ سوختن سوځېدل ـ (ياجلنا) ـ (۲) حسد کول ـ د حسد په اور کښې سوځېدل ـ

**سوځېدنګ** :- (س+و+(د)زې+د+ن+ګ) (وـــــ سوځېدنه)

**سوځېدنه** :- (س+و+(د)زې+د+ن) (حمص)(۱) سوخته کېدنه ـ ل په اور کښې اچولے ـ کېدنه ـ سوځېدنه ـ (۲) حسد کونه ـ

**سوځېدونکے** :- (س+و+(د)زې+دو+ن+کے)(اس فا ـ ج ـ کي)(۱) سوخته کېدونکے ـ سوځېدونکے ـ (۲) حسد کوونکے ـ

**سوچ** :- (سو+چ)(ه ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)فکر ـ خيال ـ

**ـــــ کول**:فکر کول ـ غور کول ـ خيال کول ـ

**ـــــ** :- (سُو+چ)(ق ـ صف) (۱) خالص ـ صفا ـ بې ګډونه ـ (۲) د هسک اچولو ، قُرعه اندازي يو خاص طريقه چې د لاس په ګوتو کولے شي (سوچاک ـ شت شوړک او سوچکے هم ورته وائي)

**ـــــ** :- (س+ُو+چ)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) بټن ـ بټنه ـ د بجلۍ يا د مشين بټن ـ

**ـــــ ان کول**:-(آ+ن)(انګ ـ پ تر)د بجلۍ (وغېره) بټنه لګول (يعني بجلي بلول)

**ـــــ بورډ**:-(بو+ر+ډ)(انګ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)هغه تخته په کومه چې د بجلۍ (يا مشين وغېره) بټن يا بټنې لګېدلې وي ـ

**ـــــ کښې کښل**:- بټنه لګول ـ

**ـــــ کول**:-(وـــــسوچ وهل)

**ـــــ وهل**:-د بجلۍ (يا د بل کوم مشين دلګولو يا چلولو بټنه لګول) ـ سوچ ان کول ـ

**سوچاک** :- (سُو+چا+ک)(وـــــ سُوچ)

**سوچکے** :- (سُو+چ+کے)(وـــــ سُوچ)

**سوچه** :- (سُو+چ) (صف ـ مذ ـ مو)صفا ـ پاک ـ بې ګډونه ـ (لکه: سوچه ريښم ، سوچه پې) دهندۍ د سُچّا نه پوره کړے شوے دے ـ

**ـــــ جامه/کپړه**:- (جا+م/ک+پ+ړ) ريښمينه کپړه يا جامه چې ريښميني کپړې نه جوړه شوې وي ـ

**ـــــ حرامي**:- (ح+را+مي) (پ تر ـ مذ ـ ج ـ ان) پوخ حرامي ـ ډېر لوې شېطان يا وران کارے ـ

**ـــــ طلا/تيله**:-(طِ+لا/تې+ل) هغه زرين تار چې د سوچه چاندۍ نه جوړه شوې وي ـ

**ـــــ غمے**:- (غ+مے) (اصلي غمے ـ

**ـــــ غوړي "کچ"**:- هغه غوړي يا کچ وغېره چې پکښې ځۀ قسم ګډون نۀ وي

**ـــــ لوښے**:- (لو+خے/شے)چيني لوښے ـ

**سوچي** :- (سُو+چي)(ه ـ صف) سوچه ـ بې وټه ـ حلالي ـ (دا د هندۍ د سُچّا سوچه اصلي نه اخستے شوے دے)

**سوچے** :-(سو+چے)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ چي) سولے ، ځولے ـ سورلے ـ شځرلے ـ (د ترکاڼانو يا اوزار چې سُوري پرې کوي)

**سوخا** :- (سو+خا)(وـــــ سخا)

**سوخت** :- (س و + خ + ت) (صف ـ مذ ـ مو ـ ه)(۱) سخت ـ غصه ـ قهر ـ (۲) په سخت کښې ـ په غصه کښې ـ له قهره ډک ـ تاؤ ـ سول ـ (۳) سوځېدلے ـ سوے (۴) سرزش ـ سوے ـ سون ـ

**ـــــ اخستل**:- غصې اخيستل ـ په قهر کېدل ـ په سخت کښې کېدل ـ له قهره ډکېدل ـ

**ـــــ کښېناستل**:- سخت کښېناستل ـ په غصه او قهر کښې کښېناستل ـ له قهره ډک کښېناستل ـ

ــــ **سوختن**:۔(سُو+خ+ت+ن) (ف ۔ مص) سوځېدل ۔ سوځول ۔ فارسي مصدر دے ۔ خو د پښتو په شعرونو کښې استعمال شوے دے ۔

**سوختني** :- (سو+خ+ت+ني)(ف۔صف) هغه څيز چې بله ولے يا سوځولے شي د بلولو او سوځولو قابل څيز ۔

**سوختول** :- (سو+خ+ت+ؤ+ل)(مص)(۱) په سُخت کول ۔ غصه کول ۔ قهر کول ۔ (۲) سوځول ۔

**سوخته** :- (سو+خ+ت)(ف ۔ مذ ۔ مو)(۱) سوځېدلے ۔ په اور سکارۀ شوے لولپه ۔ (۲) قهرېدلے ۔ په غصه کښې ۔ د غصې ډک ۔ (۳) مصيبت زده ۔ ډېر زيت تکليف کښې اچولے شوے ۔(۴) عاشق ۔ مئين ۔

د چارپايو په حساب دي،سړي نۀ دي

چــــې په ساز سوختګانو ناره نۀ کا (خوشحال)

ــــ **بخت**:۔(ب+خ+ت)(هغه کس چې بصيب ئې سوے وي ۔ د سوي بخت خاوند ۔ بدنصيبي ۔ بد قسمته ۔ بد بخته ۔

ــــ **بريان کول**:۔ داسې سوځول چې وريت شي ۔ ښخي سوځول ۔

ــــ **دل**:۔(ف تر ۔ اس ۔ ج ۔ (ان) سوځېدلے زړۀ ۔ عاشق يا مئين ۔ سوے زړۀ

چې حاصل ئې د خپل يار ننداره نۀ وي

په ګلزار ئې سوخته دل نۀ وي محظوظ (خوشحال)

ــــ **کول**:۔(۱) سوځول ۔ (۲) ډېر تاؤ او دُک رسؤل ۔

ــــ **کېدل**:۔ (۱) سوځېدل ۔ ډېر تاؤ او دُک رسېدل ۔

مينه زما چې سوخته نۀ شوه د هجران په لمبو

کــــه ئې په بلو لمبو ونيسم جليا به نۀ شي (حافظ)

**سوختے** :- (سو+خ+تے) (رق) سوځېدلے او په مراد نۀ رسېدلے ۔ دا سوخت ۔

**سوختېدل** :- (سو+خ+تې+د+ل)(مص) په سُخت کښې کېدل ۔ په قهرېدل ۔ غصه کېدل ۔

**سوخر** :- (سو+خ+ر) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ونه)بغض ۔ کينه ، دښمني ۔

ــــ **کول**:۔ (مص تر)بغض يا کينه کول ۔ دښمني کول ۔

ــــ:۔ (سوخره ډکېدل ۔ (مص تر)د بغض او کينې نه ډکېدل ۔ ډېره سخته دښمني پيدا کېدل ۔

**سوخړه** :-(سو+خ+ړ) (صف ۔ مو ۔ ج ۔ ړے )(۱) سوځېدلے ۔ سوخته ۔ (۲) د غوښې يو سره کړې تيکه ۔ (ق)

ــــ **پوخړه**:۔ (پو+خ+ړ)(صف) پوخړه د سوخړے سره په طور د تاکيدي توري راغلے دے ۔ يعني ډېر زيات يا ښخي سوځېدلے ۔ سوے سکور ۔

ــــ **سوخړه کېدل**:۔ (مص تر) (۱) بالکل سوځېدل ۔ ښخي سوځېدل سوے سکور کېدل ۔ (۲) د بغض او حسد نه ډکېدل ۔ سخته کينه او دښمني پيدا کېدل ۔ (۳) د غصې او قهر نه ډکېدل ۔

ــــ **غوښه**:۔ (غ+و+خ/ش)(اس تر ۔ مو)سوځېدلې غوښه ۔

**سوخړی** :- (سُو+خ+ړ+ی)(ق ۔صف ۔ مو)ډېر زيات پوخ شوے ۔ دومره ډېر پوخ شوے چې خچړے سوے او سره ګډ شوے وي ۔

ــــ **کول**:۔(مص تر) دومره زيات پخؤل يا خوړ نيول چې ريز مريز شي او سره ګډ شي ۔

ــــ **کېدل**:۔ (مص تر) دومره زيات پخېدل او خوړېنېدل ۔ چې خچړے شوے او سره ګډ شوے وي ۔

**سوخړے پوخړے** :- (سو+خ+ړے+پو+خ+ړے)(صف ۔ مذ) دومره زيات پوخ شوے چې خچړے يا ريز مريز شوے بُرته تړې جوړه شوې وي ۔

**سوخول** :- (سو+خ+ؤ+ل)(مص)(۱) سونول (پوزه) ۔ (۲) څۀ څيز په بل لوښي وغيره کښې په زور دننه باسل ۔ په دباؤ او زور سره ډکول ۔ (۳) غوئي يا د سورلۍ څناور له چوکه ورکول ۔ د چوکې څوکه ورکښې ښخول ۔ (۴) څۀ تېرۀ څيز په چا کښې منډل ۔ (۵) سورے کول ۔

**سوخېدل** :- (سو+خې+د+ل) (مص)(۱) د ډېــــک د څــــوښ خوړلــــو اواز (۲) سورے (سورے) کېدل ۔ (۳) د فشار او د دباؤ په زور د څۀ څيز ډکېدل ۔(۴) څۀ تېرۀ څوکې واله څيز په بدن کښې ننه وتل ۔

**سوخل** :- (سو+خ+ل) (مص)څۀ څيز فشار او دباؤ سره ډکول په زور کښې باسل

**سوخه** :- (سو+خ)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ خے) سوخی ۔ غنې ۔ ذکر (اوښه اوښه سم دې شو چې لاپاتې دې شوه سوخه ۔ (متل)

**سود** :- (سو+د)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)اطمينان ۔ تسله ۔

ــــ **کول**:۔ تسله کول ۔ اطمېنان کول ۔ د زړۀ تسله کول ۔

ــــ **کېدل**:۔ (مص تر) تسله کېدل ۔ اطمينان کېدل د زړۀ خواهش پوره کېدل ۔ زړۀ په تسلي کېدل ۔

**د زړۀ ــــ پرې کېدل**:۔ د زړۀ تسلي پرې کېدل ۔ د زړۀ اطمېنان پرې کېدل ۔

**سُود** :- (سُو+د)(ف ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ونه)(۱) فائده ۔ نفع ۔ زياتے ۔

سود ئــــې بــل نشته له سرداريو

لعنت پرې تل رېشخند په خان کا (سعيد ختک)

(۲) په قرض وغېره هغه زياتے چې په شرو کښې حرام دے ۔ ربا ۔

ــــ **بيا موندل**:۔ فائده بيا موندل ۔ فائده تر لاسه کول ۔ فائده اخستل ۔

ازاد خان په سرکښې کښې څۀ خوند بيا موند

دغــــه حــــال د هــــربــــاغي اهل طغيان دے (حافظ)

ــــ **خور**:۔ هغه کس چې په سود باندې قرض ورکوي په قرض ورکړو پيسو باندې د اخستونکې ۔ حرام خور ۔

ــــ **خوړل**:۔ "سود (ربا) ګټه خوړل ۔ حرام خوړل ۔ حرامه ګټه خوړل ۔

ــــ **زيان**:۔فائده او نقصان ۔

ــــ **کول**:۔(مص) په قرضو باندې سود (ربا) اخستل د سود کاروبار کول

ــــ **ګن**:۔(ګ+ن) (صف ۔ مذ ۔ مو ۔ ه) فائده من ، سودمند ، فائده مند ، نفع مند ۔

ــــ **ګنه**:۔(ګ+ن)هوسانيه ۔ راحت ۔ ارام ۔ اسودګي ۔ اسائش ۔

ــــ **ګنه**:۔(ګ+ن) فائده مندي ۔ فائده ۔ سودګي ۔

ــــ **لرل**:۔فائده لرل ۔ فائده اوچتول ۔

ــــ **موندل**:۔ (مص تر)فائده موندل ۔ نفع رسېدل ۔ ښېګړه حاصلېدل ۔

ــــ **ورکول**:۔ په قرض باندې مقرر سود(ربا) ورکول ۔

**په ــــ اخستل**:۔ څۀ رقم (پيسې ټکې) د چا نه په دې شرط اخستل ۔ چې دومره رقم به د اصل نه زياتې ورکوي ۔

ــــ **له سُوده لاس ختل**:۔ د فائدې يا نفعې نه مايوسه کېدل ۔

**سُود** :- (سُو+د)دا لفظ عموماً سودا سره د تاکيدل د پاره راځي ۔

ــــ **سودا**:۔ پــه بــازار يــا دوکـان کښـې څيزونـه اخيسـتل (او خرڅول) خريد و فروخت ۔

که هر څو په سود سودا ګرم ليدۀ شي

تــــر ماښامــــه دے د دې بازار رونق (خوشحال)

ــــ **سودا کول**:۔ د بازار نه د ضرورت څيزونه په بيعه اخستل ۔ خريد و فروخت کول ۔

بازار دا دے کــــه څوک سودا سودا کاندي

پــــه هغــــه جهان نــــه سود شته نــــۀ سودا (رحمان)

**سودا** :- (سو+دا) (اس ۔ مو ۔ ج ۔ ګانې)(۱) د ضرورت څيزونه په بيعه اخستے

شي (۳) کاروبار ـ تجارت ـ

یا ئې تړوله کا په ظلم

یـــا د خمر په سودا (رحمان)

**ـــ کول**:ـ(۱) بیعه خلاصول ـ د څهٔ ځیز د اخستو د پاره د قیمت یقین کول ـ

چــې له تا سره په سر کاندي سودا

بل به نهٔ وي هسې ما غوندې شېدا (حافظ)

(۲) ځیزونه په بیعه اخستل ـ خرید کول ـ

نن په دې بازار کښې سودا اوکړه صبا د کوچ دے

رخت فراوان یـــوسه، کــه هورې غواړې سودونه (حافظ)

**ـــ کېدل**:ـ د څهٔ ځیز یا مال د بیعې خلاصے کېدل ـ بیعه خلاصېدل ـ د قیمت تعین کېدل ـ په بیعه سره جوړول ـ

**ـــ گر**:ـ(گ+ر)(ف اس ـ مذ ـ ج ـ ان ـ مو ـ ه) د ځیزونو د اخستو او خرڅولو کار کوونکے ـ تجارت کوونکے ـ تاجر ـ

**ـــ گري**:ـ (اس ـ مو) تجارت ـ د ځیزونو په بیعه د اخستلو او خرڅولو پیشه ـ

**سودا** :- (سو+دا)(اس ـ مو)(۱) د بني ادم په څلورو اخلاطو کښې یو خلط (چې تور وي) ـ (۲) خیال ـ فکر ـ (۳) لېونتوب ـ جنون ـ (۴) عشق محبت (۵) غم ـ تردد ـ پرېشان ـ فکر مندي ـ

**ـــ اخستل**:ـ(مص تر) د څهٔ خاص خبرې په حقله فکر او تردد پېدا کېدل ـ په فکر کېښ پرېشانه کېدل ـ د څهٔ کار یا معاملې په حقله فکر او غم کښې مبتلا کېدل ـ

**ـــ ایستل**:ـ شک لرې کول ـ وهم لرې کول ـ

**ـــ وي**:ـ(وي) هغه بیمارې یا تکلیف وغېره چې تعلق ئې سودا سره وي ـ یعني چې وجه ئې د سودا د خلط وي ـ

**ـــ**:ـ (سو+دا) (وــــ سوړه)

**سودات** :- (سو+دا+ت)(صف ، مذ ـ مو ـ ه)صالح ـ نېک ـ

**سودا خېل** :- (سو+دا+خېل) (اس ـ مع) داد مېر داد خېلو یو څانگه ده ـ چې (عبدالرحمان خېل ، نانا خېل ، بهلول زي) محسود دي ـ

**سودان** :- (سو+دا+ن) (اس ـ مع) پــه افریقــه کښــې د یــو ملــک نــوم دے ـ عموماً سُوډان وئیلے شي ـ خو اصل لفظ سودان دے ـ یعنې د تورو خلقو ملک ـ

**سودن خېل** :- (سو+د+ن+خېل)(اس ـ مع)د اسپرکا یو ښاخ دے ـ چې (کالو خېل ، احمد زئ ، درویش خېل) وزیر دي ـ د سدن خېلو څانگې دا دي ـ باغبان خېل ، برات خېل ، بکول خېل ، او کندي ـ

**سودائ** :- (سو+دا+ئي)(اس ـ صف)هر وخت فکر او غم کوونکے ـ د ډېر فکر په وجه متردد او پرېشانه اوسېدونکے ـ لېونے ـ چې حواس ئې کار نهٔ کوي یا عقل ئې په ځاے نهٔ وي ـ

**ـــ کول**:ـ(مص ـ تر)(۱) په فکر ونو کښې وختول د څهٔ خاص خبرې په حقله فکر او غم کښې اخته کول ـ(۲) لېونے کول ـ مخبوط الحواس کېدل ـ

**ـــ کېدل**:ـ په وخت د څهٔ خاص خبرې یا مقصد په حقله فکر او غم کول ـ په فکر او غم اخته کېدل ـ

**سودائے خام** :- (ئے+خا+م)هغه خواهش یا خیال چې په عمل کښې نهٔ شي راتلے ـ ناشونے کار ـ

**سوده** :- (سُو+ده)(صف)ټول ـ تمامي ـ سر د سره ـ

**سود** :- (سو+د)(اس ـ مذ ـ ج ـونه)تسلّي ـ اطمینان ـ سود ـ

**ـــ پرې کېدل ، دزړهٔ**:ـ د زړهٔ سود پرې کېدل ـ د زړهٔ تسلّي پرې کېدل ـ د زړهٔ اطمینان پرې کېدل ـ زړهٔ ته پرې اطمینان رسېدل ـ

**ـــ کول**:ـ تسله کول ـ سود کول ـ

**ـــ کېدل**:ـ تسله کېدل ـ سود کېدل ـ

**ـــ** :ـ (سُو+د)(ق ـ صف)د سُوم نرمېدل ـ هغه حېوان چې د ډېر تنگ لـه کبلـه ئې پښو سُمونه سو لېدو سره کچه شي ـ د اس د زغل او کار نه پاتې کېدل ـ

چــې ئې نال د لېونتوب نهٔ وي وهلې

هر سمند د عشق په زمکه شي سُوده (حمید)

**ـــ کېدل**:ـ (مص تر) د حېوان سمونه نرمېدل چې د ډېر تنگ په وجه ئې د پښـو سمونه وسولېږي او کچه شي ـ

**ـــ**:ـ (س+و+د)(اس مو ، ج ـ دے)(۱) ټوکرۍ ـ سبد ـ شکور ـ لنگور که (۲) سرپوښ ـ (ظفر) سرپوش ـ

**سُود** :- (سُو+د)(ه ـ صف ـ مو) خالص ـ سوچه ـ تمامي ـ ټول ـ دا پې خو سوده اوبهٔ دي ـ

**سودېدل** :- (سو+دې+د+ل)(مص) فائده موندل ـ فائده اخستل ـ

**سودېدهٔ** :-(سو+دې+د)(حمص)فائده موندنه ـ

په سودا کښې ئې بهبود دے

بـــل ځاے نشته سودېـــدهٔ (حافظ)

**سوړا** :- (سو+ړا) (وــــ سوړه)

**ـــ واټر**:ـ (وا+ټ+ر) سوډې واله اوبهٔ ـ اصل کښې په دې کښې کار بانک اېسډ گېس ورگډ شوے وي ـ په بندبوتلو کښې د څښلو د پاره خرڅېږي چې بوتل پرانستے شي نو خولې کښې ځگ پېدا کړي چې د بوتل نه باهر هم راووځي ـ خو بیا دا ځگ په خپله کېښني او ټول جوش ئې ختم شي ـ

**د ـــ جوش**:ـ ناپئداره جذبه ـ چې لکه د سوډا واټر په جوش کښې راشي او بیا زر کښېني ـ

**سوړان** :- (سُو+ړا+ن) (وــــ سودان)

**سوړر** :- (سو+ړ+ر)(اس ـ مذ ـ ج ـ ان) (۱) ســتور ـ خنزیر ـ (۲) (مجازاً) بې غېرته سړے ـ (۳) مجازاً بې کاره او سست پست غوئیے ـ

**سوړه** :- (سو+ړ)(انگ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ سوډې)(۱) صفا کړې شخار ـ چې د جامو د وینځلو د پاره پکارولے شي ـ (۲) د سوډې یو مرکب چې خوراکې سوډه بللے شي ـ د هاضمې د پاره هم پکارېږي او د اوړو د زر خمبیره کېدو د پاره د اخښلو په وخت کښې اچولے شي ـ

**سوړَ** :- (سو+ړ)(اس ـ مو)د سوپرې سر ـ د کونې یا د کوس سورے سمبې ـ سمبۍ (رق) ـ

**ـــ**:ـ(سـو+ړ)(اس ـ مـو ـ ج ـ ړے)(۱) ټکـي ـ چلـوټي ـ مکـر ـ (۲) لاڅې ـ لاپې ـ ډوزې ـ

**سوړي** :- (سـو+ړي)(اس ـ مع)یو پښي قبیلـه ده ـ چې صالح زئ بیا ددې سوړېیو څانگه ده ـ

**ـــ (ددغه)** :ـ(اس ـ مع)د مرغزاني پښو یوه څانگه ده ـ

**سوډیم** :- (سو+ډي+ئ+م)(انگ ـ اس ـ مذ) یو قسم سپینه چکمداره معدني مالگه ـ

**ـــ سائلي سیټ**:ـ (سا+ئ+لي+سے+ټ) (انگ تر ـ اس ـ مذ) د یوې دوائي نوم دے چې د هاضمې د پاره استعمالولے شي ـ

**سوډیم کلورائیډ** :- (سو+ډي+ئ+م+ک+لو+را+ئ+ډ) (انگ تر ـ اسم) د خوراکې مالگې سائنسي طبي نوم دے ـ

**ـــ نائټرېټ** :ـ(نا+ئ+ټ+رے+ټ) (انگ تر ـ اس ـ مذ) د یوې دوائي نوم ـ

**سور** :- (سُو+ر) (یا)

**سوور** :- (سُو+و+ر)(اس ـ مذ ـ مو ـ ه) سور ـ خنزیر ـ سوړر ـ خربیشوے مشهور

ځناور چې اسلام کښې ئې غوښه خوړل حرام دي - ځکه د کنځلو په طور استعمالېږي - د سوّر په شان پليت ، او د کرکې وړ - د سوّر په شان بد خصلته يا پليت -

**ــ به**:-(ب)(اس - مذ - مو - بنه)د سورانو (بدځناور) ځروونکے -

**ــ د بچے**:- د سوّر بچے - د خنزير بچے - د کنځلو په طور استعمالېږي - د سوّر بچيه - د سپي بچيه -

**د ــ تيکه**:- (تي+ک)(و ــ د سور غوښه)

**د ــ غوښه**:-(غ+و+خ/ش)(اس - مو - ج - ښې)حرام - ناجائز - عموماً محاوره کښې استعمالېږي او د بېخي انکار معنٰی ورکوي لکه دا څيز رابانديې د سور غوښه شو - يعني دا څيز مطلقاً ما څخه نشته -

**ــ**:-(سُو+ر)(اس - صف - مذ - مو - سرّه)(۱) سور رنګ واله - سور رنګے (۲) د غصې نه سور شوے - په قهر په غصه -

**ــ ازغے**:- (ا+ز+غے)

**ــ اغزے**:- (ا+غ+زے)(ق - اس - مذ)يو اغزن - (ازغزن) بوټے -

**ــ انګار**:- (ا+ن+ګا+ر)(صف - مذ) د انګار په شان سور شوے - تک سور (د مخ رنګ ئې له قهره سور انګار شو) -

**ــ او شين کېدل**:- (ق)د مخ رنګ سور او شين کېدل - مجازاً ډېر زيات په قهر کېدل - ډېر زيات غصه کېدل -

**ــ باټينګر**:-(با+ټي+ن+ګ+ړ) (اس - مذ) ټماټر - عموماً د جمعې په شکل کښې سرۀ باټينګر وئيلے شي -

**ــ باد**:-(اس - مذ - ج - سرۀ بادونه)

**ــ بازار**:- با+زا+ر) ډک بازار - ګرم بازار -

**ــ بخن**:- (ب+خ+ن) (صف ، مذ - مو - ه) هغه سوروالے چې شوخ نۀ وي - او تش سوروالے راوړي - سور غوندې - سور رنګ ته نژدې رنګ -

**ــ بخونه**:-(ب+خُو+ن)(و ــ سوربخنه)

**ــ بوڼک**:- (بو+ن+ړ+ک)(و ــ سوربوڼ)

**ــ بوڼے**:-(بو+ن+ړے)(۱) هغه سرے چې رنګ لري سوربوڼک - (۲) نولے - مشهور ځناور چې د مار ډېر سخت دښمن دے -

کله سر په سينه ومنډي شرګے شي
کلـــه سرموړي د ما لکه سربوڼے (خوشحال)

**ــ بېرغ**:- (بې+ر+غ) (فپ تر - اس - مذ - ج - سرۀ بېرغونه)(۱) سره جنډه - (۲) د بد کارۍ علامت - پخوا به په عربو کښې بدکارو ښځو د نشان په طور په خپل کور سره جنډه لګوله -

**ــ پوستے**:- (پو+س+تے)(صف - مذ - ج - سره پوستي)(و ــ سُورمخے)

**ــ ټکرۍ**:- (ټي+ک+ر+ۍ)(اس - مو)جنګيالۍ ښځه - کنځل ماره ښځه -

**ــ ځـاځکے**:-(ت)سا+(ت)س+کے)(ق - اس - مذ - ج - کي)يوه مضره حشره (چينجے مينجے)

**ــ خاوے**:-(خا+وے)(اس - مذ - ج - ي) د مرغابو يو قسم - سور خاوۍ -

**ــ خچوکے**:-(خ+چو+کے)(اس - مذ - ج - کي)(۱) د غوښې سره تيکه - (۲) مجازاً هغه سرے چې رنګ ئې تک سور وي - سور بوڼک سرے -

**ــ ځان سور خچوکے کول**:-د ځان نه سره غوښه جوړول - مجازاً د ځان ډېره زياته صفائي کول -

**ــ دلے**:-(د+لے)(اس - مذ - ج - لي)د يوې مرغۍ نوم دے - باد خوراک (فارسي سرخ پشتک)

**ــ راتلل**:-په غصه کښې راتلل - غصه کول - (په چا) -

**ــ سپين**:- (س+پي+ن)(صف - مذ - مو - سره سپينه)د بني ادم د ښکلي مخ صفت چې سپين وي - اس د وينو له کبله سرخي هم لري -

**ــ سترګي**:-(س+ت+ر+ګي)(صف - ج - ګي)(۱) د سرو سترګو خاوند - (۲) مجازاً - بې وېرې - زړۀ ور -

**ــ سرے**:-(س+رے)(پ صف - مذ - ج - لري) (۱) هغه سرے چې د سر وېښتۀ ئې سرۀ وي -(۲) هغه سرے چې سپين وېښتۀ ئې په نکريزو سرۀ کړي وي -

**ــ سرے**:-(س+رے)(اس - مذ - ج - سري)يو وړه شان خوش اوازه مرغۍ چې سر ئې سور وي -

**ــ سورکه**:-(سو+ر+ک) (اس - مو - ج - کې)(۱) د اتش بازۍ يو څيز(۲) تېز باد -

**ــ سيند**:- (اقا) (سي+ن+د) (اس - مع - مذ)بحيره قلزم - (نوې اختراع)

**ــ غاړکه**:-( غا + ړ+ک )(اس - مو - ج - کے )يو وړه شان مرغۍ چې مرۍ ئې سره وي -

**ــ غاړے**:- (غا+ړے)(اس - مذ - ړي)د مرزانو يو جنګيالے قسم -

**ــ غاړې**:- (غا+ړې)(و ــ سورغاړکه)

**ــ غمے**:-(غ+مے)(اس - مذ - ج - ي)ياقوت -

**ــ کافر**:-(کا+ف+ر)

**ــ کاپر**:-(کا+پ+ر) (صف ، مذ ،ج - ان - مو - ه)(۱) د سرو کافرو يو وګړے (۲) په کفر کښې ډېر کلک - لوے سروپ کافر - (۳) (مجازاً) ډېر ظالم - ډېر بې رحمه ډېر ګرانفروش -

**ــ کت**:-(ک+ت)(اس - جم)د خولې د مرضونو مشهوره دوائي -

**ــ کټ**:- (ک+ټ)سور پالنګ - هغه کټ چې پښې ئې په سور رنګ ښائسته کړے شوې وي چې عموماً د ناوو د پاره د وادۀ په وخت جوړولے شي

د فراق په شپه سور کټ په مـا سور اور شي
يـــو زمــــــان مې باندې نۀ لګي اړخونه (خوشحال)

**ــ کنډو**:-(ک+ن+ډو) (و ــ سورکنډو)

**ــ کوکو**:- (کو+کو) (ق اس - مذ) سور ګلاب -

**ــ کونډو**:- (کو+ن+ډو) (ق اس - مو)هغه جينۍ چې لاخپل وېښتۀ قطع کوي او وادۀ کړې نۀ وي -

**ــ کېدل**:- غصه کېدل - په قهر کېدل - سوربدل -

**ــ ګړے**:- (ګ+ړے) (ق - اس - مذ)د يو پوست او کمزورے بوټے چې وېخ ئې ډېر سست وي - سرګړے -

**ــ ګلے**:-(ګ+لے)(اس - مذ - ج - ګل)د صحرا يو بوټے دے - چې وارۀ سرۀ ګلونه کوي

**ــ ګولخ**:- (ګو+ل+خ)(ق - صف - مذ - مو - ه) غټ پټ او سور بوڼک سرے -

**ــ لاسے**:- (لا+سے)(صف - مذ - ج - سي) هغه سرے چې لاسونه ئې (د مقتول په وينو) سرۀ وي - ښکاره قاتل -

**ــ لغر**:-(ل+غ+ر) (اس - مذ - مو - ه) د مرغـو هغـه بچے چې لائې وزر نـۀ وي شوې - سره څنګوړے -

**ــ لکۍ**:-(ل+ک+ۍ) (ق - اس - مو)د "سورلکے" تانيث دے -

**ــ لمنه**:-(ل+م+ن )

**ــ لمنے**:-(ل+م+نے) (صف - مو - ج - لمنې) هغه ښځه چې د اولاد د کېدو (وضع حمل) په وخت مړه شي -

**ــ مخے**:- (م+خے)(صف - مذ - ج - مخي ، مو - مخې) هغه سړے چې د مخ رنګ ئې سُور وي سُور بوڼک -

**ــ مړنے**:- (م+ړ+نے) (صف - مذ - ج - نې) ډېر مړنے - ځوانمرد - غېرتي -

**ــ مېزر**:-څادر - پړونے - چې سور رنګ لري چې عموماً ئې ځانې جونه پېغلې په سر وي -

**ــ لنډ**:-(ل+ن+ډ)

**ــــ لنډے**:- (ل+ن+ډ ے)(اس - مذ - ج - لنډي) ګيدړ - مشهور ځناور - شغال -

**ــــ مرچ**:-(وـــــ سورمرچکے)

**ــــ مرچکے**:- (م+ر+چ+کے)(اس - مذ - ج - کي) مرچکے مشهوره ترخه مېوه ده - چې خلق ئې د انګولي مصالحه کښې استعمالوي - دا اول شنۀ وي او چې پخه شي او د شوکولو شي نو سرۀ شي (د تورو مرچو په مقابله کښې ورته سور مرچکے وائي) - ډېر تريخ طبيعته سړے - ډېر غصه کېدونکے -

**ــــ مهر**:-(مُ+ه+ر)(فپ تر - اس - مذ - ج - سره مهران)د سرو زرو مهر - اشرفۍ -

خزانې د هندوستان دي راخورې شوې
سـرۀ مهـــران دي ننه ووځي په کهسار (خوشحال)

**ــــ مېږے**:- (مې+ګے/ژے)(اس تر مذ - ج - ږي)(۱) د مېږو يو ډېر وړوکے قسم چې سره يا زيړ سرۀ بخن وي - (۲) مجازاً داسې سړے چې په قد خو مندرے وي خو په کار کښې ډېر چست او دور انديشه وي (ظفر) -

**ــــ وارۍ**:- (وا+ر+ئ) (اس - مو)يو مارغۀ دے - پښې لنډے -

**ــــ وزرے**:-(و+ز+رے) (ق - اس - مذ - مو - ري)د يو مرغۍ نوم دے - چې وزر ئې سرۀ وي -

**ــــ وزمه**:-(و+ز+م)(صف) سور بخن - هغه رنګ چې پکښې د سور رنګ اثر هم وي

**ــــ وږے**:- (و+ګے/ژے)(ق اس - مذ - ج - ږي) (۱) هغه غنم چې وږي ئې سرۀ وي (۲) يو قسم بوټے -

**ــــ والکنډا**:- (و+ل+ک+ن+ډا)(ق - اس - مذ - ج - ډے)مسين لګن -

**ــــ ولکنډے**:- (و+ل+ک+ن+ډے)(ق - اس - مذ - ج - ډي)هغه لـې مسـين لوښے چې غوا پکښې لوشي - دکئ -

**سور/سرۀ وېښتۀ**:- (وې+خ/ش+ت)کچ عمر - کم عمر - په سرو وېښتو کښې وادۀ شوه

**ــــ په وينو**:-(پ+وي+نو)(صف - مذ - ج - سرۀ)په وينو لړلے - زخمي - ژوبل

**سُور** :- (سُو+ر)(اس - صف - مو - سره)په تېلو يا غوړو کښې پوخ کړے - چې په پخېدو ئې رنګ سور بخن شي -

**ــــ کړے**:- (ک+ړے) (اس مف - ج - ي)هغه غوښه وغېره چې په غوړو - مصالحو کښې پوخ کړے شوې وي - (او اوبۀ پکښې نۀ وي اچولے شوې) او رنګ ئې سور بخن شوے وي -

**ــــ کړے چرګ**:-(چ+ر+ګ)(اس مذ - ج - سرۀ کړي چرګان)(۱) چرګه په غوړو او مصالحو کښې په اور سور کړے شوے وي (۲) خوراک ته تيار (۳) شنۀ مرچکي چې په غوړو کښې سرۀ کړے شي -

**ــــ کول**:-غوښه وغېره په تشو غوړو کښې او مصالحو کښې پخول - (چې اوبۀ پکښې وانۀ چولے شي)

**ــــ کون**:- (ک+و+ن)(حمص)په غوړو - مصالحو کښې پخؤنه -

**ــــ کوونکے**:-(ک+وو+ن+کے)(اس فا - ج - کي)هغه کس چې غوښه وغېره په تشو غوړو او مصالحو کښې پخوي -

**ــــ کېدل**:- (۱) د غوښې وغېره په تشو غوړو او مصالحو کښې پخول (چې اوبۀ پکښې وانۀ چولے شي) (۲) غصه کېدل -، په قهر کېدل -

**ــــ کېدنه**:- (حمص)(۱) د غوښې وغېره په غوړو او مصالحو کښې پخېدنه - چې رنګ ئې سور بخن شي - (۲) غصه کېدنه - په قهرېدنه -

**ــــ کېدونکے**:- (کې+دو+ن+کے) (اس فا - ج - کي) (۱) غوښه وغېره چې غوړو مصالحو کښې سرۀ کېږي - يا کولے شي - چې رنګ ئې سور شي - (۲) غصه کېدونکے - په قهر کېدونکے -

**سُور** :- (سُو+ر)(اس مع)د تر غرۀؤ يوه ځانګه ده - کاکړ دي -

**سُور**:- (سُو+ر)(اس - مذ)(۱) هغه نر چېلے يا ګډ چې چېلۍ يا ګډه تربنه حمل نه اخلي - (ق)(۲) هغه چېلے يا ګډ چې په چېلۍ يا ګډه ختے نۀ شي - (ظفر)

**سُور** :- (سُو+ر)(ق - اس - مذ) په لوبه کښې د لوبې هغه څيز چې د هغې وهل منع وي - او که يو لوبغاړے هغه ووهي نو هغه لوبه بېلي -

**سور** :- (سو+ر)(اس - مذ - ج - ونه)پلن والے - عموماً د کپړې د پلن والي په معنٰی راځي - عرض - پسور -

خـبردار ئې پـه ساره په اوږده نۀ وي
چې درياب تـر کـومه لاړ دے پهن تره (خوشحال)

**ــــ اوږد**:-(اُو+ګ/ږ+د)(اس - مذ) (۱) اوږدوالے او پلن والے طول او عرض - (۲) اندازه -

**ــــ ؤر**:-(ؤ+ر) صف ، مذ ، مو - ه)ډېر سور واله - ډېر پلن -

**سور** :- (سو+ر)(اس - صف - ج - سوارۀ)د سورلۍ په څيز (لکه اس - اوښ سنډا - ټانګه ګاډے وغېره) باندې ختلے سپور - (د پلي او پياده په مقابله کښې)

**ــــ کونے**:- (کو+نے)(اس - صف - مذ - ج - ني)سور - سپور - روانه دے فرض مونځ بې نفله په سور کوني باندې - (خېرالبيان)

**سُور** :- (سُو+ر)(اس - مذ) غزېدونکے ښکر - بيګل - (د صور بدل شکل دے) (پښتو کښې عموماً ترجمه شپېلۍ کولے شي - خو اصلي معنٰی ئې برنۍ ده)

**د ــــ شپېلۍ**:- (اق)د اسرافيل عَلَيْهِ السَّلَام شپېلۍ - صور -

**سوراج** :- (س+وا+را+ج)(ه - اس - مذ)اصلاً هندو - خو په پښتو کښې ئې شاعري کوله - د بنو د علاقې د لاسه خان ئې په خپلو شعرونو کښې ستائيلے دے -

**سوراخ** :- (سو+را+خ) (ف - اس - ج - ونه)سورے -

**د سوزن په ــــ ننوتل**:- د ستنې په سيم کښې ننوتل - ډېر مشکل کار سر ته رسول -

**سوراخان خېل** :- (سُو+را+خان+خېل)(اس - مع) د ګيګا خېلو يوه ځانګه ده چې (نانا خېل ، بهلول زئ) محسود دي -

**سوراړ** :- (سُو+را+ړ) (پ صف)هغه زمکه چې پکښې هېڅ قسم شين شينکے نۀ وي - بې اوبو ، بې ګياه زمکه سوراړا -

**سوراړا** :- (سُو+را+ړا)(اس - مو - ج - ګانې)سور اړ زمکه - هغه زمکه چې پکې هېڅ شين شينکے نۀ وي - بې اوبو بې ګياه زمکه - خشکه مېره -

**سوراړيا** :- (سو+را+ړ+يا)(اس - مو - ج ګانې) سوراړا - بټ بېديا -

**سوران** :- (سو+را+ن)(ق - اس - مذ - ج - ونه)(۱) فرياد - شور زوږ فغان - (۲) تود باد - يو مرض دے چې د ډېرې ګرمۍ نه پېدا کېږي - او مريض ډېر زياتې اوبۀ څښکي - خو تنده ئې نۀ مري - استسقاء - (۳) د اوښانو د يو مرض نوم - (۴) حرص - طمع -

**ــــ اخستل**:-(مص تر)(۱) د استسقاء په مرض کښې مبتلا کېدل - (۲) پـــــه خوراک کښې ډېر حرص اخستل -

**ــــ ختل**:- (مص تر)فرياد ختل - چغې سورې ختل - فغان ختل -

**ــــ وهل**:-(مص تر)فرياد کول - چغې سورې وهل - فغان کول -

**سوران خېل** :- (سو+را+ن+خېل)(اس - مع) غېبي خېلو ځانګه ده - چې (بابکري خېل ، سياه) افريدي دي -

**سوراڼا** :-(سو+را+ن+ړ)(صف - مذ)سور بخن - سور رنګ ته نزدې - سرخۍ ته مائل رنګ -

**سورانے** :-(سو+را+نے)(اس - مذ - ج - ني) فرياد کوونکے - چغې سورې وهونکے فغان کوونکے - انصاف غوښتونکے - مظلوم -

**سورب/څورب**:- (سو+ر+ب) (وــــ څورب)

**سورباد** :- (سو+ر+با+د)(رق ـ اس ـ جم) جوانوا ـ جوانها ـ حجاما ـ

**سوبخې** :- (سو+ر+ب+خې)(اس ـ مذ) د خروړک په شان د شاروو د خوراک یو قسم ګیاه ده ـ

**سوربلې** :-(سو+ر+ب+لې)(اس ـ مذ)یو قسم خوشه داره ګیاه ده ـ چې د غنمو په فصل کښې پیدا کېږي او غنم ودې ته نهٔ پرېږدي ـ

**سورب/ځورب والې** :- (سو+ر+ب+وا+لې)(وــــځورب والې)

**سوربونې** :- (سو+ر+بو+ن+ړې)(وــــ سپور د لاندې)

**سورپلي** :-(سو+ر+پ+ل+ي)(وــــ سورپلې)

**سورپلې** :-(سو+ر+پ+لې)(اس ـ مذ)یو قسم سوځوونکے بوټے دے ـ چې بدن سره ولګي نو بیا هغه ځائے تر ډېر ساعته پورې سوے کوي ـ او وړ سېږي سورپلي

**سورت** :- (سو+ر+ت) د قرآن مجید د یو شمېر ایتونو مجموعه د ایتونو په سورتونو کښې تقسیم او ترتیب پخپله حضور پاک ﷺ کړے دے ـ د سورت لغوي معنٰی مختلفې دي ـ لکه د ښارونو چاپېره د بوال په عام فهم معنٰی کښې مونږ ورته باب (Chapter) وئیلے شو ـ دا په شمېر کښې یو سل او څوارلس دي ـ

**ــــ بندي**:ـ د سورتونو تقسیم ـ

**ــــ**:ـ (سو+ر+ت) (وــــ صورت)

**سورجه** :-(سو+ر+ج) (ق ـ اس ـ مو ـ ج جې)د یوې لوبې نوم ـ

**سورخکه** :- (سو+ر+خ+ک)(اس ـ مو ـ ج ـ کې)(۱) د مشهورې مرغۍ نوم چې توره وي او نرې سپین ټاکي لري ـ خلق ئې ښکار کوي ـ سرخکه (۲) د کروندې د زمکې یو قسم ـ

**سورخه** :- (سو+ر+خ) (ق اس ـ مو)د غنمو یو قسم ـ

**سورخې** :- (سو+ر+خې)(اس ـ مذ) د غنمو د فصل یو مرض ـ چې د غنمو په وړو کښې ډېر نرې پر دار حشرات (چینجي) پیدا شي ـ او د غنمو ډکې ترې اوبهٔ واخلي او وچ شي ـ

**ــــ**:ـ (سو+ر+خې)(ق اس ـ مذ ـ ج ـ خي)د زنانۀ د پیغو پیوند ـ

**ــــ**:ـ (سو+ر+خې)(ق اس ـ مذ ج ـ خي)هغه اس چې سر ئې سور وي ـ سر خون اس

**سور خېل** :- (سو+ر+خېل)(اس ـ مع)د علي خېلو یوه څانګه ده ـ چې (اشوخېل ، ادم خېل) افریدي دي ـ

**سورډا** :- (سو+ر+ډا)(وــــ سرنا)

**سورړانچي** :- (سو+ر+ړا+ن+چي)(وــــ سورناچي)

**سورس** :- (سو+ر+س)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)منبع ـ مصدر ـ ماخذ ـ

**سورسات** :- (سو+ر+سا+ت) (ت اس ـ مذ) (۱) هغه غله یا نور سامان چې د رعیت نه په جبر او زور وصولولے شي ـ (۲) په اولس باندې جبري حکومت ـ (ق) عشق عالي بادشاه دے سلطنت د زړهٔ په ملک کا
سرومــــال بــــه ورکــړم که قبلېږي په سورسات (حسین)

**سورساندے** :- (سو+ر+سا+ن+دے)(اس ـ مذ ـ ج ـ دي)یو غرئیز ګل ـ

**سورسانده** :- (سو+ر+سا+ن+د)(ق اس ـ مو)یو قسم غرئیز بوټے دے ـ چې سور ګل کوي ـ او په ژمي کښې د ګډو بزو خوراکه وي ـ

**سورسانړه** :- (سو+ر+سا+ن+ړ)(اس ـ مذ)وېر کوونکے ـ نوحه ګر ـ (ظفر)

**سورشارے** :-(سو+ر+شا+رے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ري)شاهین ـ مشهور ښکاري مارغهٔ

**سورغال** :-(سو+ر+غا+ل)(اس ـ مذ)هغه زمکه وغېره چې معاش د پاره چاله ورکړے شي ـ سیری (ترکي : سیورغال)

**سورکا** :- (سو+ر+کا) (صف)کم اصل ـ کم ذات ـ

**سورکی** :- (سو+ر+ک+ی)(اس ـ مو) (۱) الو بالو مشهوره مېوه (ق) ـ(۲) د "سورکے" مؤنث ـ سور بخن ـ سور رنګے ـ (۳) سرخي ـ غازه ـ

**سورکے** :- (سو+ر+کے)(صف ـ مذ ـ ج ـ کي)سور رنګے ـ تت شان سور رنګ واله سوربخن ـ

**سورمېږے** :- (مې+ګے/ږے)(تر ـ مذ ـ ج ـ مېږي)سور رنګے مېږے ـ د مېږو یو ډېر وړوکے قسم چې زېړ سور بخن رنګ لري ـ

**سورل** :- (سو+ر+ل)(ق ـ اس ـ مذ)کرنګ اس ـ زېړ رنګے اس یا قچر ـ سرت ـ سورت ـ

**سورلان** :- (سو+ر+لا+ن)(ق ـ اس ـ مذ)د سپیو یو قسم دے ـ چې وروستو پښو کښې ئې خاورې ـ او شرمخان ترې ډېر وېرېږي ـ

**سورلس** :- (سو+ر+ل+س)(وــــځورلس)

**سورلکے** :- (سو+ر+ل+کے)(اس ـ مذ ـ ج ـ کي) د چڼ چڼ هومره یوه مرغۍ چې لکۍ ئې سره وي ـ او ارام نهٔ کوي ـ

**سورلن** :- (سو+ر+ل+ن)(صف ـ مذ ـ مو ـ ه)هغه اباد دے چې مخ ئې سهیل طرفته وي ـ سیورن ـ مخ په سوري ـ

**سورلونے** :- (سو+ر+لو+نے)(وــــ د "سور" تر لاندې)

**سورلۍ** :- (س+و+ر+ل+ۍ) (اس ـ مو) ټانګې یا بس وغېره کښې سفر کوونکے ـ (دا لفظ د واحد ، جمع او مؤنث ، مذکر ټولو د پاره استعمالېږي)

**ــــ کول**:ـ د ټانګې د پاره سورېدونکي او سفر کوونکے لټول ـ

**سورلي**:- (س+و+ر+لي)(اس ـ مو ـ ج ـ لۍ) (۱) هغه ځیز (ځناور یا مشیني) چې بني ادم پرې د سفر د پاره سورېږي ـ (۲) سورېدنه ـ سواري ـ

**ــــ کول**:ـ(مص تر)په اس (یا په بل څهٔ ځناور وغېره) باندې سورېدل او لار وهل ـ

**ــــ مار**:ـ(ما+ر)(صف مذ ـ موه ـ ه)د سورلۍ مړنے ـ سور ـ سپور ـ شهسوار ـ

**سورلے** :- (سو+ر+لے) (ق اس ـ مذ ـ ج ـ لي)یو خوش اوازه مرغۍ ده چې رنګ ئې نسواري او سپین وي ـ

**ــــ**:ـ (س+و+ر+لے)(اس ـ مذ ـ ج ـ لي)سوکالے ـ د ترکاڼانو یو اوزار ـ چې سُوري پرې کوي ـ

**سورمائ** :- (سو+ر+ما+ئ)(صف) د رنجو په شان ـ چېتور باټینګړي وي ـ یا تور ، ابي شان وي ـ سرمی ـ (د سرمه یا رما ـ رانجهٔ نه جوړشوے) ـ

**سورمخي** :-(م+خي)(اس ـ مو ـ ج ـ مخي) (۱) سرخروئي ـ عزت ـ ابر ـ (۲) کامیابي ـ وړ کېدنه ـ

**سورمخے** :(م+خے)(ص مذ ـ ج ـ مخي)سرخرو ـ عزت ابرو واله ـ

**سورمل** :- (سو+ر+م+ل)(اس ـ مزے)یو قسم ازغے چې په شګلنه زمکه کښې کېږي او غونډ ازغي لري ـ سرمل ـ سرمله ـ سرمل مې په صحرا کښې بدې شهٔ په کور کښې راته زرغن شهٔ ـ (متل)

**سورمېخ** :- (سو+ر+مې+خ)(ق ـ اس ـ مذ)د یوې لوبې نوم ـ

**سورن** :- (سو+ر+ن)(اس ـ مذ)کرنګ اس ـ زېړ رنګے اس یو قچر سرن ـ

**سورنا** :- (سو+ر+نا)(اس ـ مو ـ ج ـ ګالې)مشهور ساز چې د خولې په پوکي غږولے شي ـ

**ــــ چي**:ـ(چي) (اس ـ مذ ـ ج ـ ان) د سرنا غږوونکے د سرنا د ساز د غږولو پوهان یا ماهر ـ

**سورنائے** :- (سو+ر+نا+ئے)(وــــ سرنا)

**سورنجان** :-(سو+ر+ن+جا+ن)(ق ـ اس جـم)د يـو قسـم دارو نـوم دے ـ چـې د جوړونو په مرض کښې استعمالېږي ـ

**ـــ تلخ**:ـ (ت+ل+خ)د سورنجان يو قسم دے ـ چې په خوند تراخهٔ وي ـ ددې پـه مقابلـه کښـې بـل قسـم ئـې خـوږ وي ـ دواړه قسـمونه پـه دارو کښـې استعمالېږي

**سورنجن** :- (سو+ر+ن+ج+ن) سورنجن ـ سور بخن ـ

**سورنجڼ** :- (سو+ر+ن+ج+ن+ړ)(و ـــــ سوربخن)

**سورنچے** :- (سو+ر+ن+چے)

**سورنچي** :- (چي) (وـــــسرناچي)

**سورن خېل** :- (سو+ر+ن+خېل)(اس ـ مع)د خرويتـو يـوه څانګه ده ـ چې غلزئ پاوند دي ـ

ـــ:ـ (اس ـ مع)د بـابکري خېلـو يـو ښـاخ دے ـ چـې سـياه افريـدي دي ـ بيـا سـلطان خېـل ، قاسم خېـل ، ميـري خېـل ، قـائم خېـل ، او مامـل خېـل د سورن خېلو څانګې دي ـ

**سورندا** :-(سو+ر+ن+دا)(ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ دې)(۱) سرينده ـ (۲) سـاز د غـږولـو اله ، که د پوکي واله وي او که د تارونو ـ (۳) غنا ـ موسيقي ـ

**سورنے** :- (سو+ر+ن+ړے)(ق اس ـ مذ ـ ج ـ ړي)وړوکے چيلم ـ (و- سرنا)

**سورنګ** :- (سو+ر+ن+ګ)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) نيلي اس ـ

**سورنګ** :- (سو+ر+ن+ګ)(وـــــځورنګ)

**ـــ کول**:ـ (وـــــځورنګ کول)

**ـــ کېدل**:ـ (وـــــځورنګ کېدل)

**سورنګول** :- (سو+ر+ن+ګ+ؤ+ل)(وـــــځورنګول)

**سورنګونه** :- (سو+ر+ن+ګ+ؤ+ن)(وـــــځورنګونه)

**سورنګوونکے** :- (سو+ر+ن+ګ+وو+ن+کے)(وـــــځورنګوونکے)

**سورنګېدل** :- (سو+ر+ن+ګې+د+ل)(وـــــځورنګېدل)

**سورنګېدنه** :- (وـــــځورنګېدنه)

**سورنګېدونکے** :- (وـــــځورنګېدونکے)

**سورنے** :- (سو+ر+نے) (صف ، مذ ـ مو ، نې) سورلن هغه عمـارت چې مخ ئې سوري طرفته وي ـ

**سورور** :- (سو+ر+و+ر)(صف ـ مذ ـ ج ـ ه) سوروالـه ـ پلن ـ (لکه:سورورہ ژبه)

**سُورؤلے** :- (سو+ر+ؤ+لے) (اس مف ـ ج ـ لي) (۱) په زوره غورځولے ـ پـه زوره ويشتلے (ور) لړه کړے ـ (۲) په قهر کړے ـ

**سوره** :- (س+و+ر)(اس ـ مو ـ ج ـ سورې) د پښتنو په رواج کښې هغـه جينـۍ چې د قتل يـا د بلې کومې دښمنۍ د فېصلې مطابق ، د مقتـول خاندان (يا مظلوم فريق) لـه ورکړې شي ـ

**ـــ او پياده**:ـ(ا+و+پ+يا+د) (پ تر)لفظي : په اس وغيره سوره زنانه او پيـاده : پلے يعني په خپلو پښو تلونکې ـ کنايه: د قتل يـا د بـل څهٔ داسې جرم بدلـه کښې چې کومه جينۍ ورکړې شي هغې تـه "سوره" وائـي ـ او دې جينـۍ سره چې کوم نقد مال يـا نور څهٔ څيز ورکړے شي پياده بللے شي ـ لکـه: جرګې فېصله وکړه چې دوه سورې او دومـره پيـاده دې ورکـړے شي ـ يـا يوه سوره او څو پياده مو په بدۍ کښې ځنې واخستل ـ (ق)

**ـــ ورکول**:ـ(مص تر)د قتل يا د داسې بل کوم جرم (لکه جينـۍ تختـول وغيـره) کښې د روغې د فېصلې مطابق د مجرم خور وغيره بل فريـق لـه ورکـول ـ په بدو کښې ورکول ـ

**سُوره** :- (سو+ر)(اس ـ مو ـ ج ـ سورے)فرياد ـ چغه ـ (عموماً د جمع پـه شکل کښې او بل لفظ سره يو ځاے راځي ـ لکه نعرې سورې چغې سورې)

**سوره** :- (سو+ر)(اس ـ مو ـ ج ـ سورتونه) سورت ـ د قرآن پـه بېلـو بېلو برخـو کښې يو برخه (سوره ئې تلفظي شکل دے)

**سوره** :- (سو+ر)(اس ـ مو ـ سورې)(۱) د سوُر (خنزير) جمع ـ (۲) د "سور" پـه لفظ مخطبه يعني اے سوره ! ـ

**سُوره** :- (سو+ر)(ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ رے)يو بدبويه بوټے دے ـ چې زيړ ګل کوي او ډانډے ئې په مينځ کښې ډډ وي برېنګ ـ ګنډلے ـ

**سوري** :- (سو+ر+ئ) د "سورې" تانيث دے ـ

**ـــ پېسه**:ـ هغه وړه پېسه چې په مېنځ کښې ئې سورے وُ ـ مجازاً حقير سکه ـ لکه سورے پېسه هم راسره نشته ـ

**ـــ کنجکه**:ـ هغـه کنجکـه چـې پـه مېنـلـو سـره سـورے کـړې شـوې وي ـ د کونجکو په لوبه کښې ډېره ګټندويه وي ـ خو دوکانداران ئې نه خوښـوي ـ څکه کنايةً ډېر حقير څيز ـ لکه : سرې کنجکه دې هم راباندې نشت ـ

**ـــ مشکنه**:ـ هغه مشکنه چې سورے کړې شوې وي بې قيمته څيز ـ حقير څيز

**سُوري** :- (سو+ر+ئ) (اس ـ مع)د التمان خېلو د منډلو يو څانګه ده ـ

ـــ:ـ (س+ؤ+ر+ئ)(ق ـ اس ـ مو)د اس د زين د لاندې ئې اچولو غرهٔ عرق ګير ـ

**سورے** :- (سو+رے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ري)سايه ـ

**ـــ په ګټو ويشتل**:ـد چانه ډېر زيات نفرت او کرکه کول ـ ان چې د هغهٔ سورے هم نهٔ خوښول او په تيږو ويشتل ـ

**ـــ د سر**:ـ(د+س+ر)سرپرست ـ امداد کوونکے ـ پالنه او روزنه کوونکے ـ

**ـــ د سر نه پاتې کېدل**:ـ(۱) د خاوند مړ کېدل ـ (۲) د پلار مړ کېدل ـ

**ـــ کول (په چا)**:ـپناه کښې راوستل ـ سرپرستي کول ـ

**ـــ کېدل**:ـ د چا سرپرستي کول ـ څوک په پناهٔ کښې اخستل ـ

ـــ:ـ (سو+رے) (اس ـ مـذ ـ ج ـ ري)د ماشـومانو يـو مـرض ـ چـې ماشـوم پـه کښې ورځ تر ورځ مانده کېږي او نهٔ اوچتېږي ـ يوه وهمي عقيـده ده چې په ماشوم باندې د کوم بـر روح سـورے وشـي نـو هغـه پـه دې مـرض کښـې اخته شي ـ

**ـــ کېدل**:ـ (۱) د سوري مرض کېدل ـ (۲) اثر کېدل ـ د چا د اثر لاندې راتلل يا د چا نه څهٔ (ښهٔ) بد عابد زده کول ـ

ـــ:ـ (سو+رے) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ري) ګرده ـ

**سُورے** :- (سو+رے) (اس ـ مذ ـ ج ـ ري)(۱) سوراخ ـ سُوړه ـ (چې د دواړو غاړو نه ازاده وي) ـ غلبېل کوزې ته وې چې تاکښې دوه سوري دي ـ (متل) (۲) د پېسو ټکو د لګېدو ځاے ـ عموماً د جمع په صورت کښې استعمالېږي)

**ـــ پيدا کول**:ـ(مص تر)(۱) د څهٔ ګرانې حل يا لار رايستل ـ (۲) د پېسـو ټکـو د لګولو د پاره ځاے پيدا کول ـ

**ـــ پيدا کېدل**:ـد پېسو ټکو د لګولو د پاره ځاے پيدا کېدل ـ د پېسو د خرڅ ځاے راوتل ـ

**ـــ سمبورے**:ـ (س+م+بو+رے) (پ تر)سـورے سـورے ـ د سُـورونه ډک ـ غلبېـل غلبېـل ـ (عموماً د ښېرې پـه طـور وئيلے شي لکـه اے تـهٔ سـورے سمبور شې) ـ

**ـــ سورے کول**:ـ ډېر زيات سوري (په څې څيز کښـې) کـول د سورو نـه ډکـول ـ غلبېل کول ـ

**ـــ سورے کېدل**:ـ ډېر سوري (په څې څيز کښې) جوړېدل ـ غارغار کېدل

**ـــ ورکېدل**:ـ

**ـــ ورک کېدل**:ـ (مص تر) د څهٔ ګرانې د حل کولو لار يا طريقه خطا کېدل ـ په چل نهٔ پوهېدل ـ

**ـــ سورے "بودل"**:ـمحاوره ـ د چا په لاس کښې پېسې ټکې نهٔ حصار بدل ـ بد

خرڅه "بودل" ډېر خرڅ کوونکے "بودل" ۔

**سُورے** :- (سو+رے) (اس ۔جم) چغـې ۔نـرې ۔کریکـې ۔فریــاد ژړا ۔ (عموماً دا لفظ ناري یا نعرې سره یو ځاے راځي)

**ــــ کول**:۔ (وـــ سورے وهل)

**ــــ ناري**:۔ (نا+رې)

**ــــ نعرې**:۔ (ن+ع+رې) (پ تر ۔ اس جم)چغې کریکې ۔ فریاد چغې ۔

**ــــ وهل**:۔چغې وهل ۔ کریکې وهل ۔ فریاد کول ۔

**سوري** :- (سو+ري) (اس ۔ ج)د "سورے" جمع ده ۔ ډېر سوري ۔

**ــــ اوړېدل**:۔د نمر د اسمان د مېنځ نه بل مخ ته اوړېدل ۔ چې سورے ئې نمر خاتۀ طرف ته راښکاره شي ۔ د زوال وخت ۔

**ــــ ته اچول**:۔ په سوري اچول ۔ سوري ته کول ۔ خپل به دې مړ کړي سوري ته به دې واچوي ۔ (متل)

**ــــ کښېناستل ، د چا**:۔ د چا د سر پرستۍ لاندې راتلل ، د چا د مرستې لاندې راتلل ۔

**په ــــ کښېنې**:۔ په عېش او ارام کښې لوئېدل ۔ چې غر یعني څۀ سخته او تکلیف ئې نۀ وي لیدلے ۔

**په ــــ کښېناستل د چا**:۔ د چا د سرپرستۍ لاندې راتلل ۔ د چا د مرستې او امداد د لاندې راتلل ۔

**د ــــ خپل نه وېرېدل**:۔ ډېر زیات وېرېدل ۔ ان چې د خپل سوري نه ئې هم تر هـه پیدا کېدل ۔

**د ــــ نه تښتېدل**:۔ د چا نه ډېر نفرت کول ۔ د چا نه ډېر لرې اوسېدل ۔

**د ــــ نه هم ځان ژغورل**:۔ د چا (بد سړي) نه ډېر لرې اوسېدل ۔ لکه د فلاني د سوري نه مې دې هم خداے وساتي ۔

**سر په ــــ کول**:۔ (۱) پناه لټول ۔ پناه یا سر پرستۍ کښې راتلل ۔ (۲) کور یا کوټه جوړو ۔ (د سادگۍ یا د انکسار اظهار) ۔

**سوري** :- (سو+ري)(اس ۔ مع) د سا رنگ زو یوه ځانگه ده ۔ چې (هارون خېل ، ساتیا) کاکړ دي ۔

**سُوري** :- (سو+ري)(ق ۔ اس ۔ مو)لوبیه بوجۍ ۔

**ــــ**:۔ (سُو+ري) (اس ۔ ج)د سورے جمع ۔

**ــــ سمبوري**:۔ (س+م+بو+ري)(ق) (وـــ سورے سمبورے)

**ــــ سوري**:۔(سو+ري) (پ تر)داسې څیز چې پکښې بې شمېره سوري وي ۔ د سورو نه ډک ۔

**ــــ کوتره**:۔ (کو+ت+ر) (اس ۔ مو ۔ ج ۔ ترې)د ځنگلي کـوترو یـو قسـم ۔ چې عامو کوترو نه لږه وړه وي ۔

**سوریا** :- (سو+ر+یا)(وـــــ سوریا)

**سوریانکه** :-(سو+ر+یا+ن+ک)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ نکې)د یوې مشـهورې مرغـۍ نـوم زېړ سوپے (په فارسۍ کښې ورته دختر صوفي وائي)

**سوري پـاؤ** :- (سـو+ري+پا+ؤ)(اس ۔ مـو)د کُلت خېلو یـو وړه ځانگـه ده چې (نوراخېل ، اسماعیل زي) ترکاني دي ۔

**سوریته** :- (سو+ت+ي+ت) (اس ۔ مو ۔ ج ۔ تې)(۱) هغه وینځه چې د مالـک نـه ئې زوے لور راوړې وي ۔ (۲) هغه وینځه چې په نکاح شوې او ازاده شوې وي (ظفر)(۳) انډیواله ۔ (ظفر)

**سورېدل** :- (سو+رې+د+ل)(مص)(۱) غړېدل ۔ چغې وهل ۔ سورې وهل ۔ (۲) غصه کېدل ۔ ډېر په قهر کېدل ۔ (د قهر په سبب د مخ سور کېدل)

**سورېدل** :- (وـــ سورکېدل)

**سـوریه** :- (سـو+ري+يَ)(اس ۔ مع)سـیریا ۔ د شـام ملـک ۔ د سـور ئـې عربـي

جمهوریت

**سوړ** :- (سو+ړ)(صف ۔ مو ۔ سړه)(۱) یخ ۔ چې گرمي پکښې نۀ وي (۲) هغـــه سړے یا ښاروے چې په کار کښې سست وي یعني کار ورو ورو کوي ۔ (۳) هغه سړے چې په طبیعت کښې ئې گرمي نۀ وي ۔ یعني زر نۀ غصه کېدل ۔

**ــــ احساس**:۔(ا+ح+سا+س)(عپ تر ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ سارۀ احساسونه) داسې احساس چې پکښې گرمي نۀ وي ۔

**ــــ باد**:۔(با+د)(پ تر ۔ مذ) (۱) یخـه ـهـوا ۔ (۲) مجازاً غـم ۔مصیبت (ق) د افغانستان د یخ ملک محاوره ده چې هلتـه سوړ باد یـو لـوے مصیبت وي لکه څنگه چې د سرحد گرمو علاقو کښې تود باد د تکلیف باعث وي ۔

**ــــ بادوهل**:۔ (مص تر)یخ باد وهل ۔ په مصیبت ۔ تکلیف یا غم کښې مبتلا کېدل ۔ (وـــ سوړ باد)

**ــــ بوړ**:۔(بو+ړ) (صف ۔ مذ)(۱) غمجن ۔ په تکلیف یا مصیبت کښې اخته ۔ (۲) پرېشانه ۔ وار خطا ۔

**ــــ بوي**:۔ (بو+ئي)

**ــــ بوي**:۔ (بو+ئي)(اس تر ۔ مذ)(۱) یخ بوي ۔ (۲) خـراب بـوي ۔ بـد بـوي (خصوصاً د خوراک د څۀ څیز په سخا کېدو چې کوم وړم ترې پیدا شي)

**ــــ پوړ**:۔(پو+ړ)(صف تر مذ ۔ مو ۔ سړه پړه)بالکل یخ ۔ یخ یخ ۔ سوړ سمخ ۔

**ــــ پوړ اړول**:۔(مص تر)څوک په یو گزار بېهوشه کول ۔ او وژل ۔

**ــــ پوړ اوښتل**:۔(وـــــ سوړ پوړ لوئېدل)

**ــــ پوړ لوئېدل**:۔ یخ شوے غورځېدل ۔ مخ سره مړ کېدل په یو گزار وژلے کېدل ۔

**ــــ توب**:۔ (تو+ب) سوړتیا ۔ سړزي ۔ یخ والے ۔

**ــــ تیا**:۔(ت+یا)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ گانې) سوړ والے ۔ د سوړ شوي څیز حالت ۔

**ــــ سمخ**:۔ (س+م+خ)(صف تر ۔ مذ ۔ ج ۔ سړه سمخه) بالکل سوړ ۔ بالکل یخ ۔ یخ یخ ۔

**ــــ فکره**:۔ ف/في+ک+ر)(صف)په فکر کښې د گرمۍ او جوش نـه کـار نـۀ اخستونکے ۔ په سړه مینه فکر کوونکے ۔ په سوچ کښې د اعتـدال نـه کـار اخستونکے ۔ په څۀ کار کښې تادي نۀ کوونکے ۔

**ــــ گهیځ**:۔ (گ+هي+ځ)(اس تر ۔ مذ ۔ ج ۔ سارۀ گهیځونه)صبح کاذب ۔ د شپې نه پس هغه رڼا چې لږ ساعت د پاره ښکاره شي او بیا غېبه شي ۔ دروغجن سحر ۔

**ــــ نگور**:۔ (ن+گو+ر)(صف تر مذ ۔ سړه نگړه) ډېر زیات سوړ ، یخ یخ ۔ سوړ سمخ ۔

**ــــ والے**:۔ (وا+لے)(اس ۔ مذ)(۱) سوړتیا ۔ سړزي ۔ د یو څیز یخ حالت ۔ (۲) په طبیعت کښې د گرمۍ او جوش کمے ۔

**سوړ** :- (سو+ړ)(اس ۔ مذ)یو ډول واښۀ دي ۔ چې د وړې ببرې همره دانه کوي ۔ چې سلېښنـاک مـواد لـري ۔ په دارو کښې پکارېږي ۔ (عربۍ کښې ورته "دِبق" وائي)

**سوړا** :-(سو+ړا)(ق ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ گان)سست پست ۔ بې همته سړے ۔ بې زړۀ

**سوړسـک** :-(سـو+ړ+س+ک)(اس ۔ مـذ ۔ ج ۔ ونـه) سـکړک ۔ د جـوارو د اوړو ډوډۍ

چـــې ئـــې ړدې پـــه خوړه ژبه مېلمه ته
سېور سوړسک د حمید خوند کا ت نرچوري (حمید)

**سوړن** :- (سو+ړ+ن) (صف ۔ مذ ۔ مو ۔ سوړنه)(۱) دروغژن ۔ دروغجن ۔ (۲) لاپې وهونکے ۔لپُو ۔

**سوړنگ** :- (سو+ړ+ن+گ)(صف ۔ مذ ۔مو ۔ ه)د بدن هغه حصه چې بې حسه

شوې وي ـ سوړنګور ـ

**سوړول** :- (سو+ړ+ؤ+ل)(مص)(۱) سړول ـ یخـه ول ـ (۲) تـاؤ غصـه ـ ګرمـي یـا جوش سمول ـ

**سوړه** :- (سو+ړ)(اس ـ مو ـ ج ـ ړې)(۱) سوراخ ـ موری ـ سورے ـ (خصوصاً هغه سورے چې بل طرفته بند وي) ـ (۲) د پیسو ټکو د لګېدو ځاے ـ (۳) یو مرض ـ باد خوراک ـ (۴) (عوام) کُونه ـ مقعد (۵) (عوام) کُوس ـ

**سوړے** :- (سو+ړے)(صف ـ مذ)سرګډے ـ چې حواس ئې په ځاے نۀ وي ـ لېونے ـ مخبوط الحواس ـ

ــــ :- (سو+ړے)(وـــ سوړا)

**سوړي** :- (سو+ړي)(صف ـ مو)دروغ ـ سوټي ـ

**سوړېدل** :- (سو+ړې+د+ل)(مص)(۱) سړېدل ـ یخېدل ـ (۲) ګرمي ، تاؤ ـ غصه یا جوش نۀ پاتې کېدل ـ

**سوړے سمبورے** :- (سو+ړے+س+م+بو+رے)(صف)سورے سورے ـ غار غار

ــــ **کول** :ـ(مص تر)سورے سورے کول ـ غار غار کول ـ غلبېل غلبېل کول

**سوز** :- (سو+ز)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) سوزش ـ سوځېدنه ـ سوزے ـ (۲) یو خاص قسم ماتمي نظم یا د دغې ماتمي نظم وئیل (عموماً د محرم په ورځو کښې وئیلے شي) ـ

ــــ **ناک** :ـ(نا+ک)(صف ـ مذ ـ ج ـ مو ـ ه)سوځوونکے ـ سوونکے ـ سوزان ـ

ــــ **د زړۀ** :- (د+ز+ړ)(اس تر ـ مذ)د زړۀ سوځېدنه ـ د زړۀ سوزه ـ

**سوزاک** :- (سو+زا+ک)(ف ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)سوځوونکے ـ سوځنده ـ سوزان ـ (عام نۀ استعمالېږي)

ــــ :- (سو+زا+ک)(ف ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د یو مرض نوم دے ـ چې پکښې متیازې په ډېر سوز او تکلیف سره راځي ـ

**سوزان** :- (سو+زا+ن) (ف ـ صف مذ ـ مو ـ ه) سوځوونکے ـ سوځېدونکے ـ

**سوزاني** :-(سو+زا+ني)(پ تر ـ صف)سوځوونکے ـ

**سوزبر** :- (سو+ز+ب+ر)(اس ـ مذ)سبز برګ بدل شکل دے ـ (وـــ سبز برګ)

**سوځل** :- (سو+ز+ل) یا (س+و)(مص)سوځول ـ سوځول ـ

**سوزش** :- (سو+ز+ش)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)سوځېدنه ـ سوے ـ

**سوزښت** :- (سو+ز+ښ/ش+ت)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)سوے ـ

**سوزکے** :- (سو+ز+کے)(اس ـ مذ ـ ج ـ کي)د یو بوټي نوم ـ چې بدن سره ولګي نو هغه ځاے سوے راځلي ـ سوځوونکے بوټے ـ

**سوزل** :- (سو+و+ز+ل)(مص)سوځېدل ـ سوخته کېدل ـ جلیا کېدل ـ سوزے کول ـ

**سوزن** :- (سو+ز+ن) (ف ـ اس ـ مو)ستن ـ د ګنډلو ستن ـ

ــــ **عیسیٰ** :-(عي+سا) (اس ـ مو)د حضرت عیسیٰ ؑ ستن ـ وائي چې یوه ستن د حضرت عیسیٰ ؑ په لمن کښې پاتې شوې وه ددې له کبله هغۀ د ځلورم اسمان نه پورته لاړ نۀ شو او په ځلورم اسمان کښې پاتې شو ـ

**سوزنګ** :- (سو+ز+ن+ګ)(اس ـ مذ)یو غرئیز بوټے دے ـ

**سوزنۍ** :- (سو+ز+ن+ۍ)(اس ـ مو)د کټ غټ اودلے شوے څادر ـ پالنګ پوش

**سوزني** :- (سو+ز+ني)(صف)(وـــ سوسني)

ــــ :- (سو+ز+ني)(اس ـ مو ـ ج ـ نۍ)هغه پټه چې ماشوم ، په اور نیي کښې نغښتلو نه پس (وتړي) ـ سیزني ـ

ــــ :- (سو+ز+ني)(ق اس ـ مو)د ګوتو د ستنې نفس کار چې د څادر په حاشیه یا د ستار په سرونو کولے شي ـ

**سوزوارے** :-(سو+ز+وا+رے) (ق اس ـ مذ ـ ج ـ ري)یوه وړه مرغۍ چې پښې ئې لنډې وي ـ

**سوځول** :- (سو+و+ځ+ؤ+ل)(مص)(۱) په اور بانـدې سوخته کول ـ سوخول ـ سوختن سېزل ـ سیځل ـ (۲) د چا په مخکښې داسې کار کول چې هغۀ له پرې تاؤ (غصه) ورځي ـ یسخول ـ

**سوځولے** :- (س+و+ځ+ؤ+لے) (اس ـ مف ـ مذ ـ ج ـ لي)سوخته ـ په اور کښې اچولے ـ سوځولے ـ

**سوځونه** :- (س+و+ځ+ؤ+ن) (حمص)(۱) سوخته کونه ـ سېزنه ـ سېځنه ـل (۲) سیخونه ـ تاؤ وروستنه ـ

**سوځوونکے** :- (س+و+ځ+وو+ن+کے)(اس فا ـ ج ـ کي)(۱) سوځولو والـه ـ سوخته کولو والـه (۲) یسخولو واله ـ تاوجن کولو واله ـ

**سوزه** :- (سو+ز) (سو+ز)(اس ـ مو ج ـ زې) سوځېدنه ـ سوزکونه ـ د سوځېدلي ځاے درد ـ

ــــ :- (سو+ز)(اس ـ مو ـ ج ـ ے)(۱) ترخځه ـ تخرګے ـ هغه درې ګهیزه کپړه ـ چې د جامې بنې او ګس طرف ګنډلې شي ـ تریز ـ (۲) د قمیص څاک ـ (۳) د قمیص شلېدلے ځاے پیوندونه ـ

**سوزے** :- (س+و+زے)(وـــــ ـ سوځے)

ــــ :- (سو+زے)(اس ـ مذ ـ ج ـ سوزي)(۱) سر پوښه شکرۍ چې پکښې ډوډۍ کښېښودے شي ـ (۲) د ټنګے خولے ټوکرۍ یا شکرۍ چې پکښې زنانه د خپلو ګنډلو وغېره سامان کېږدي ـ

**سوزي** :- (سو+زي)(ق اس ـ مو) خرابه شوې ـ سخا شوې سبزي چې بوي ئې پرېښودې وي ـ

**سوږه** :- (سو+ګ/ژ) (ق اس ـ مو)د اشتقار ویو قسم چې کندونو په رنګولو کښې پکارولے شي ـ

**سوس** :- (سو+س)(ع ـ اس ـ مذ)خوږولے ـ مُولټې ـ مشهوره دوائي په پښتو (خصوصاً په طب کښې) په مرکبو الفاظو کښې راځي ـ لکه: اصل السوس سارب السوس ـ (وـــ سوس لاټدې)

ــــ **اصل د** :ـ(ا+ص+ل+د)(عـپ تر ـ اس ـ مذ)اصل السوس ـ د مُولټې جرړه په دوائیانو کښې استعمالېږي ـ

ــــ **رب د** :ـ (ر+ب+د)(عپ تر ـ اس ـ مذ) رب السوس ـ د ملټیو وچه کړې شیره د مولټیو ست یا خلاصه په دارو کښې استعمالېږي ـ

ــــ :- (سُو+س)(ق ـ مذ)د رېښمو چینجے ـ

ــــ :- (س+و+س) (اس مع)هغه څیز چې د سویټزلینډ ملک سره تعلق لري ـ په سویټزر لېنډ کښې جوړ شوے ـ (لکه ـ ګړۍ)د دغې ملک ګړۍ او کمانسۍ ډېر شهرت لري ـ

**سوسائټي** :- (سو+سا+ئ+ټي)(انګ ـ اس ـ مو ـ ج ـ انې)(۱) جمعیت ـ جماعت ـ (۲) معاشره ـ

**سوست** :- (سو+س+ت)(وـــ سست)

ــــ **لینده** :ـ (وـــ سسته لینده)

**سوسر** :- (سو+س+ر)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) د دریاب خنزیر ـ (۲) نهنګ ـ (۳) رزیل ـ غل ـ حرصي ـ کمینه بې غېرته ـ

**سوسکول** :-(سو+س+ک+ؤ+ل)(مص)لړزول ـ رپول ـ

**سوسکونګ** :-(سو+س+ک+ؤ+ن+ګ)(وـــ سوسکونه)

**سوسکونه** :- (سو+س+ک+ؤ+ن) (حمص)لړزونه ـ رپونه ـ

**سوسکوونکے** :- (سو+س+ک+وو+ن+کے)لړزوونکے ـ رپوونکے ـ

**سوسکېدل** :- (سو+س+کې+د+ل)(مص)(۱) لړزېدل ـ رپېدل ـ (۲) د خوراک د پاره ځاے په ځاے ګرځېدل ـ طفیلي (ظفر)

**سوسکېدنګ** :- (سو+س+کې+د+ن+ګ) (وــــ سوکېدنه)

**سوسکېدنه** :-(سو+س+کې+د+ن)(حمص)(۱) لړزېدنه ـ رپېدنه ـ (۲) د خوراک د پاره ځاے په ځاے ګرځېدنه ـ

**سوسکېدونکے** :- (سو+س+کې+دو+ن+کے)(اس فا ـ ج ـ کي)(۱) لړزېدونکے ـ رپېدونکے ـ (۲) د خوراک د پاره ځاے په ځاے ګرځېدونکے ـ

**سوسما** :- (سو+س+ما+ر)(ف ـ اس ـ مو ـ ج ـ رې)د ځمځرې په شان یو ځناور ، غارندوے ـ

**سوسمبر** :-(سو+س+م+ب+ر)(اس ـ مذ)پودینه ـ یا د وېلني خودرا نضاع نانا

**سوسن** :- (سو+س+ن)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) مشهور ګل دے ـ چې نیله شان رنګ لري ـ (ددې ګل په مېنځ کښې یو غوټۍ د ژبې په شان راوتې وي ـ ځکه شاعران په خپلو شعرونو کښې د سوسن ژبې ذکر کوي) ـ ددې ګل نور رنګونه هم وي ـ لکه سپین زېړ وغېره ـ

ارغــوان دي ضمیران دي سوسن رېحان دي
یـــــا سمـن دي نستـــرن نـــرګس ګــلـنـار (خوشحال)

(۲) د مسلمانانو ښځو یو نوم ـ

**ــــ ازاد**:-(آ+زا+د)(ف تر ـ اس ـ مذ)د سپین رنګ سوسن (ګل) ـ

**ــــ** :- (سو+س+ن)(ق ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه) لوړ قد ـ بلند قد ـ

**سوسني** :- (سو+س+ني)(اس ـ صف)د سوسن (ګل) د رنګ په شان رنګ نیله (چې پکښې لږه شان سرخي هم شامله وي) ـ

**سوسوګے** :-(سو+سو+ګے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ګي)چتے ـ یوه ډېره وړه مرغۍ ـ

**سوسه** :- (سو+س)(ف ـ اس ـ مو ـ ج ـ سسې) د غنمو چینجے ـ سپږۍ ـ

**سوسي** :- (سو+س+ي)(وــــ سیسي)

**سوسے** :- (سو+سے)(اس ـ مذ ـ ج ـ سي)یو بوټے د شګلو وړې زمکې سسي ـ

**سوسي** :- (سو+سي)(اس ـ مو)سیسي ـ مشهوره مرغۍ ـ

**سوسیالزم** :- (سو+س+یا+ل+ز+م)(وــــ سوشلزم)

**سوسیالست** :- (سو+س+یا+ل+س+ت)(فر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان)سوشلست ـ هغه کس چې د سوشلزم نظرئې عقیده لري ـ

**سوسیالستي** :- (سو+س+یا++س+تي)(فر ـ صف)هغه کار وغېره چې سوشلزم سره تعلق لري ـ

**سوسیالستي د شوروي جماهیرو اتحاد** :- (د ، سو ، و+وي+ج+ما+هي+ را+ا+ ت+ حا+ د) د روسي سوشلسټ حکومت سرکاري نوم ـ

**سوسیولوجي** :- (سو+س+یا+لو+جي)

**سوسیولوژي** :- (وــــ سوشیالوجي)

**سوسیولوجیکي** :- (سو+س+یو+لو+جي+کي)(صف ـ مو) هغه معاملات وغېره چې سوشیالوجي (معاشري په علم) سره تعلق لري ـ د ټولن پوهنې (نوې اختراع (سوشیالوجیکل)

**سوسیولوژي کي** :- (سو+س+یو+لو+ژي+کي)(وــــ سوشیولوجیکل)

**سوشل** :- (سو+ش+ل)(انګ ـ صف)(۱) اجتماعي هئیت یا سوسائټي سره متعلق (۲) ښۀ تعلقات لرونکے ـ په معاشره کښې ښۀ ګډون کوونکے

**ــــ ورکر** :- (و+ر+ک+ر)(انګ تر ـ مذ ـ ج ـ ان ـ مو ـ ه)د اجتماعي هئیت د پاره کار کوونکے د معاشرې د اجتماعي ښېګړې د پاره کار کوونکے ـ

**سوشلزم** :- (سو+ش+ل+ز+م) (انګ ـ اس ـ مذ) د حکومت یو داسې جمهوري یا اجتماعي نظام چې پکښې د ملک پېداوار کښې ټول اولس شریک وي ـ او د انتظام ئې د حکومت په لاس کښې وي ـ د ټولونیز حکومت طرز اجتماعیت ـ اشراکیت ـ

**سوشلسټ** :-(سو+ش+ل+س+ټ)(اس ـ صف مذ ـ مو ـ ه) هغه کس چې د سوشلزم (اشراکیت) په نظام عقیده لري ـ

**سوشیالزم** :- (سو+ش+یا+ل+ز+م)(وــــ سوشلزم)

**سوشیالوجي** :- (سو+ش+یا+لو+جي)(انګ ـ اس ـ مو)د معاشرې په حقله علم ـ ټولن پوهنه ـ د اجتماعیاتو علم ـ

**سوشـــیالوجي** :- (ســـو+ش+یا+لو+جي)(انګ ـ اس ـ مـــو) علـــم الاجتمــــاع ـ عمرانیات ـ

**سوشیلستي** :- (سو+ش+ل+س+تي)(اس ـ صف)د سوشلزم متقل معملات

**سوښته** :- (سو+ښ+ت)(وــــ سوښتے)

**سوښتے** :- (سو+خ/ش+تے)(اس ـ م ـ ج ـ تي)(۱) وښکے ـ د خولې ګوټ ـ (۲) د جولاګانو ماکُو ـ

**سوغ** :- (سو+غ)(اس ـ مذ)(۱) په خوله کښې د اچولو نسوار ـ(۲) په پوزه د نسوارو راښکلو اواز(۳) د پوزې د سوړ کولو اواز(۴) ډېر لږ یا پرتے شان ځیز (۵) تسله

**ــــ** :- (ـــ سوغ)(اس ـ صوت)په پوزه کښې د څۀ ځیز (لکه نسوار) د راښکلو اواز ـ

**سوغات** :- (سو+غا+ت)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)تحفه ـ هدیه ـ ډالۍ ـ

**ــــ کول** :- په طور د تحفې ورکول ـ

**ــــ ورکول** :- تحفه ورکول ـ ډالۍ ورکول ـ هدیه ورکول ـ

**ــــ وړاندې کول** :-په طور د تحفې پېش کول ـ

**سوغاتي** :- (سو+غا+تي)(صف)سوغات سره تعلق لرونکے ـ

**سورغاړ** :- (سو+ر+غا+ړ)(اس ـ مذ ـ ج ـونه) د بادشـــاه د طرفـــه بخښـــلے شوے جائیداد سیري ـ (ت ـ سور غمال)

**سوغالے** :- (سو+غا+لے)(اس ـ مذ ـ ج ـ لي)د سوے سوړه یا غار ـ

**سوغځځ** :- (سو+غ+(د)ز+ځ)(اس ـ مو)د مېزري یا د منجو وغېره نه جوړه شوې لوښه ټوکرۍ چې خوله ئې تنګه وي ـ (او سر پوښنه وي)

**سوغځے** :- (سو+غ+(د)زے) (اس ـ مذ ـ ج ـ ځي)(وــــ سوغځي)

**سوغ چکه** :-(سو+غ+چ+ک)(اس تر ـ مـو ـ ج ـ کې)یـو چونډۍ شان ځیـز لکـه نسوار وغېره چې په پوزه راښکلے شي ـ

**سوغل** :- (سو+غ+ل)(مص)د پوزې د سوړ کولو په وخت د پوزې نه اواز وتل

**سوغن** :- (سو+غ+ن)(صف ـ مذ ـ مو ـ ه)چیلۍ یا ګډه چې د زکام په وجه ئې د پوزې نه یو خاص قسم (سوغ سوغ اواز) راووځي ـ

**سوغنے** :- (سو+غ+نے)(وــــ سوغني)

**سوغني** :- (سو+غ+ني)(صف ـ مذ)هغه اس چې د ډېرو زغلېدو په وجه ک مذورے او اموخته شوے وي ـ

**ــــ سوغني یا سوغنے کول** :- د ډېر کار اخستلو (زغلولو) په وجه اس کمزورے او اموخته کول ـ

**سوغني (یا سوغنے) کېدل** :- د ډېر مشقت (زغلېدلو) په وجه د یو اس کمزورے او اموخته کېدل ـ

**سوغول** :- (سو+غ+ؤ+ل)(مص)(۱) څۀ ځیز (لکه نسوار) په پوزه راښکل ـ (۲) څۀ ځیز (په چاکښې) چوکه کول ـ ټومبل ـ چورخول ـ

**سوغونګ** :- (سو+غ+ؤ+ن+ګ)(وــــسوغونه)

**سوغونه** :- (سو+غ+ؤ+ن)(حمص)(۱) د څۀ ښيز (لکه نسوار) په پوزه کښې ساه سره راښکنه . (۲) د څۀ تېرۀ څيز چوکه کېدنه .

**سوغوونکے** :- (سو+غ+وو+ن+کے)(اس فا . ج . کي)(۱) نسوار وغېره په پوزه کښې راښکونکے . (۲) څۀ تېرۀ څيز (په چا کښې) چوکه کوونکے .

**سوغوندي** :- (سو+غ+و+ن+دي)(اس . مو)بغض . کينه . عناد . دښمني .

**سوغه** :- (سو+غ)(و---- سُوخه)

**سوغے** :- (سو+غے)(و---- سوغن)

**سوغېدل** :- (سو+غې+د+ل)(مص)(۱) د ګټو بزو د پوزې نه د څۀ مرض (زکام) په وجه يو قسم اواز راوتل . (۲) د څۀ تېرۀ څيز په بدن کښې چوکه کېدل .

**سوغېدنګ** :- (سو+غې+د+ن+ګ)(و---- سوغېدنه)

**سوغېدنه** :- (سو+غې+د+ن)(حمص)(۱) د ګټو بزو د پوزې نه د (مرض له کبله) يو قسم اواز پېدا کېدنه . (۲) د څۀ تېرۀ څيز په بدن کښې چوکه کېدنه .

**سوغېدونکے** :- (سو+غې+دو+ن+کے)(اس فا . ج . کي)(۱) ګډه يا بزه چې د پوزې نه ئې (د مرض په سبب) اواز راځي . (۲) چوکه کېدونکے .

**سوف** :- (سُو+ف)(و---- صوف)

**سوفار** :- (سو+فا+ر) (ق . اس . مذ . ج . ونه)(۱) د ستنې سوم . چې تار پکښې اچولے شي سيم . (۲) د غشي په سر کښې هغه خرپ شان چې د ليندې په شان ژۍ باندې کښېښودے شي او د دوو ګوتو په سرونو نيولے او لينده پرې راښکے شي .

**سوفسطائي** :- (سو+ف+طا+ئي)(ع . صف)د حکيمانو (فليسوخانو) يوه ډله ده چې د حکمت (فلسفې) بنياد ئې هم دے . دوي حقائق نۀ مني .

**سوفه** :- (سو+ف)(انګ . اس . مو . ج . فې) يو قسم نرم د ناستې خاص کرسۍ چې پکښې سپرنګونه لګېدلي وي . عموماً سيټ وي چې دوه پکښې د يو يو کس د پاره وي . او درېم لوے وي د دوو يا درېو کسانو د پاره .

**---- سيټ**:- (س+ټ)(انګ تر . مذ . ج . ونه)د بنې ادمو د پاره ناستے د پاره خاص قسم سپرنګدار پوس څيز . چې دا درې برخې وي . دوه برخې د يو کس د پاره وي او يوه برخه ئې د درېو کسانو د ناستې د پاره وي .

**سوق** :- (سو+ق)(ع . اس . مذ . ج . ونه)بازار .

**---- چار**:- (چا+ر)(۱) هغه بازار چې څلور طرف ته تلے وي . چوک بازار . (۲) هغه ځاے چې څلور کوڅې پکښې يو ځاے شوے وي . ("چارسو" هم وائي)

**سوقصد** :- (سو+ق+ص+د)(رق ع تر . اس . مذ . ج .ونه)بده اراده . بد نيت .

**---- کول**: . بده اراده کول . خراب نيت کول .

**سوقي** :- (سو+قي)(ع . صف)بازاري . بازار سره متعلق .

**سوقيانه** :-(سو+قي+ا+ن) (سو+و+يا+ن)(عف تر . صف)بازاري . د کمې درجې . د سپکو خلقو (ژبه يا خبرې) .

**سوک** :- (سو+ک)(اس . مذ . ج . سوکونه)د وهلو د پاره بند موټے . مشت . (ځينې خلق ددې لفظ جمع ، سوکان هم کوي)

**سوک باز** :-(با+ز)(فپ تر . اس . مذ . ج . ان)سوک بازي کوونکے . د سوکونو مقابله کوونکے . باکسر .

**---- بازي**:- (با+زي)(فپ تر . اس . مو)د سوکونو مقابله . باکسنګ .

**---- ټپېره**:. د سوک ټپېرې جنګ هغه جنګ چې پکښې تېرۀ چاړۀ يو توپک وغېره استعمال نۀ شي . يعني ټوک چې پکښې زخمي نۀ شي . معمولي جنګ .

**---- کول**:- د سوکونو ټپېرو جنګ کول . معمولي جنګ کول . چې ټوک پکښې زخمي يا ژوبل نۀ شي .

**---- کېدل**:- د سوک ټپېرې جنګ کول . معمولي جنګ کېدل .

**---- سمول** (**چاته**)(۱) په سوک باندې د وهلو د پاره تيارېدل . (۲) په سوک وېرول

**---- فېغول**:- (چاته)(و---- سوک سمول)

**---- ورکول**:په سوک سره چاله ګزار ورکول .

**---- وهل**:- په سوک سره چاله ګزار ورکول .

**په ---- سمول**:- (کره خوله) د زور زبردستۍ نه کار اخستل د چا د شرارت جواب طاقت سره ورکول .

**په ---- وهل**:په سوک سره ګزار ورکول .

**د ---- نوک په ځاے منډل**:- د نوک ګنجائش همره ځاے کښې سوک ور منډل . مجازاً د لږ شان رعايت نه ډېره زياته (ناجائزه) فائده اخستل . ډېر زياتے کول

**---- کابلے**:- مضبوط سوک . زور واله . يا سخت ګزار واله سوک . هر سړے خپل سوک ته کابلے وائي . (متل)

**سوک** :- (سو+ک)(و---- ټوک)

**----**:-(سو+ک)(صف . مذ . مو . ه)لټ . لاه ځايه نۀ خوځېدونکے .

**----**:-(س+و+ک) (اس . مذ)رسْم باد .

**سوکا** :- (سو+کا)(صف)په سک په ارام . مطمئن . اسوده . (هندکو . سوکها)

**سوکارے** :- (سو+کا+رے)(اس . ج)نو کارې . نوکونو سره ګرونه . په نوکونو زخمي کونه .

**---- کول**:- نوکارې کول . په نوکونو خوږول يا زخمي کول . منکارې کول . نوکارې لګول .

**سوکاله** :- (سو+کا+ل) (صف)لټ . ناراسته . سست . کاهل .

چې مغروره طالب نۀ وي ډانګ پېره کا
سوکـــالــه په فقيرانو حساب نۀ دے (عليخان)

**سوکائي** :- (سو+کا+ئي)(اس . مو) ارام . اسائش . فراغت . هرسائي .

**سوکره** :- (سو+ک+ر)(ق . اس . مو)خالص . لکه: دا ډوډۍ خو سوکره مالګي ده .

**سوکړ** :- (سو+ک+ړ) (اس . مذ . مو . ه)(۱) هغه سړے چې سوکړه رېبره لري يعني چې رېبره ئې رنګې وي . او تشه په زنه باندې وي . (۲) کوسه . (۳) هغه سړے چې نرے نروچکے او په قد لوړ وي . (ق)

**---- رېبرے**:- (ګي/ژي+رے)(صف . مذ)هغه سړے چې رېبره ئې رنګې او تشه په زنه باندې وي .

**سوکړک** :- (سو+ک+ړ+ک)(اس . مذ . ج . ونه) د جوارو د اوړو ډوډۍ . جوارينه سوړسک . سکړک .

**سوکس** :- (سو+ک+س)(انګ . اس جم) هغه علم چې شهريت يا مدنيت سره تعلق لري . شهريت .

**سوکه** :- (سو+ک+ک)(ق . اس . مو)د يو قسم ګيا نوم دے .

**سوکلوک** :- (سو+ک+لو+ک)(ق . اس . مذ)(۱) هغه اټکۍ (سلګۍ) چې لړزه ورسره ملګرې وي . (۲) يو خاص لفظ دے . چې د لوړې په موقع استعمالېږي . لکه فلانے د لوړې سوکلوک وهي (يعني د لوړې لګيادے لړزېږي) (ددې لفظ اصل معنٰى معلومې نۀ شوې) .

**سوکلے** :-(سو+ک+لے)(ق . صف) هغه سړے چې سست پست او ارام طلبه وي . ځان اسانے .

**سوک موک** :- (سو+ک+مو+ک)(ق . صف)(۱) تنګ او ضيق کښېناستل . (۲) بې غمه او بې پروا کښېناستل .

**سوکني/ټوکني** :-(سو+ک+ني)(و---- ټمکني)

**سوکه** :- (سو+ک)(ه ـ صف)(۱) اسان ـ سهل ورو ـ په قلاره ـ مزه ـ (۲) ارام ـ قرار ـ سکوم ـ سرهټ ـ ټيک ـ

**ــــ کول**:- (۱) اسانول ـ سهل کول (ق) (۲) ورو ورو په مزه مزه کول (څهٔ کار) ـ (۳) ارام ور رسول ـ

**ــــ کېدل**:- (۱) اسانېدل ـ سهل کېدل ـ (۲) په ارام کېدل ـ

**سوکۍ/څوکۍ**:- (سو+ک+ۍ)(وــــ څوکۍ)

**ــــ کول**:- (وــــ څوکۍ کول)

**ــــ کېدل**:- (وــــ څوکۍ کېدل)

**سوکۍ** :- (سو+ک+ۍ)(اس ـ مو) (۱) هغه وړې دانې چې د ځوان هلک په مخ راخېژي ـ ځوانکې ـ (۲) د مخ وړې دانې چې د ګرمۍ نه راخېژي ـ (ظفر)

**سوکې/څوکې**:- (سو+کې)(وــــ څوکې)

**ــــ**:- (س+و+کې) (ق)(وــــ سوکۍ)

**سوکې** :- (س+و+کې)(اس ـ مذ ـ ج ـ کي)هغه لرګي چې نیم سوځېدلي وي ـ سوې نیم سوخته ـ

**ــــ**:-(سو+کې)(ق اس ـ مذ ـ ج ـ کي)د ګیټکو د لوبو یو قسم ګوتخند (د تشریح د پاره ـ وــــ ګوتخند)

**ــــ**:-(س+و+کې) (اس ـ مذ ـ ج ـ کي)مشهور بوټي چې بدن ورسره ولګي نو بیا هغه ځای سوی کوي ـ

**سوکیا یا سُکیا** :- د سوات د علاقې یو هندو چې د پښتو شاعرۀ ـ سوکیا یا سکیا اصلاً دا د هندۍ "سکهیا" لفظ دی ـ د دهٔ څهٔ اشعار ډار ستیټر په خپل کتاب د پښتو هار او بهار کښې راوړي دي ـ

**سوکیدار/څوکیدار** :- (سو+کي+دا+ر) (وــــ څوکیدار)

**سوکیداري/څوکیداري** :- (سو+کي+دا+ري)(وــــ څاکیداري)

**سوکیړی** :- (سو+کي+ړ+ی)(وــــ ـ ساکړي)

**سوکي موکي** :-(سو+کي+مو+کي)په سکونو موکونو وهل ـ ټکول یا ټړنه ـ

**ــــ کول**:- (ق)یو کس په څو تنه وهل ټکول او ټړل ـ

**سوګ** :- (سو+ګ)(اس ـ مذ)پرښه ـ شبنم ـ

**ــــ**:- (سو+ګ)(ف ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)ماتم ـ غم ـ افسوس ـ خصوصاً د مړي غم ـ

**ــــ کول**:- ماتم کول ـ د چا په مرګ په غم کښې کښېناستل ـ

**په ــــ کښې کښېناستل**:-په ماتم کښې کښېناستل د چا په مرګ په غم کښې کښېناستل

**ــــ وار**:- (وا+ر)(ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه)سوګ واله ـ غمجن ـ ماتم زده

**ــــ واري**:- (وا+ري)(ف تر ـ اس ـ مو)غم افسوس ـ ماتم ـ د مړي غم ـ

**ــــ یال**:-(یا+ل)(فپ تر ـ اس فا ـ ج ـ ان ـ مو ـ ه)د جنازې شریک خلق ـ

**سوګت** :- (سو+ګ+ت)(صف مذ ـ مو ـ ه)شوم ـ ممسک ـ سوګړ ـ

**سوګړ** :- (سو+ګ+ړ) (صف ـ مذ ـ مو ـ ه)شوم ـ ممسک ـ سوکت ـ

**سوګل** :- (سو+ګ+ل)(ق ـ اس ـ مذ)پوړ یا پوستکي وغیره چې د پخولو په وخت د دېګ سرته راشي ـ پوتل ـ ځځوکې ـ

**ــــ**:- (سو+ګ+ل)(وــــ سوګله)

**سوګله** :- (سو+ګ+ل)(اس ـ مو ـ ج)د پېزار یو قسم دی ـ په سفر کښې اغوستې شي او په فارسۍ کښې ورته چارق یا چراغ وائي ـ

**سوګلۍ** :- (سو+ګ+ل+ۍ)(اس ـ مو)سلګۍ ـ ایتکۍ ـ

**ــــ**:- (سو+ګ+ل+ۍ)(وــــ سوګله)

**سوګلې** :- (سو+ګ+لې)(اس ـ مذ ـ ج ـ لي)سوګلې ـ د پېزار یو قسم دی چې پخوا به سفر کښې استعمالېدهٔ ـ چارقې ـ

**سوګنده** :- (سو+ګ+ن+د)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)قسم ـ حلف ـ

**ــــ خور**:- (خو+ر)(فپ تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه) هغه سړی چې ډېر سوګندونه خوري خصوصاً په ناحقه قسمونه خوري ـ

تـوراني خو د جنجال دي د ېرخاش
دروغژن سوګند خواره بهتان تراش

**ــــ خوړل**:- قسم خوړل ـ قسم پورته کول ـ

**ــــ دې ، په ــــ وي ، په**:- د چا په نوم د قسم خوړلو په موقع وئیلې شي ـ لکه په خدای مې دې قسم وي یا په خدای هم قسم دی ـ

**ــــ کول**:- قسم خوړل ـ په قسم سره وئیل ـ

مبتلا خـاطـر ئې مري د یار له لاسه
بیا له مینې هم د یار په سر سوګند کا (خوشحال)

**ــــ ورکول**:-قسم ورکول ـ

**ــــ وي**:-(۱) د قسم خوړلو په موقع وئیلې شي ـ لکه زما دې سوګند وي چې---- ـ (۲) بله له قسم ورکولو په موقع وئیلې شي ـ لکه: ستا دې سوګند وي چې

**په ــــ وئیل**:-په قسم سره وئیل ـ

**سوګندونه** :- (سو+ګ+ن+دو+ن)(اس ـ جمع)د سوګند جمع ده ـ ډېر قسمونه ـ

**ــــ خوړل**:- د څهٔ کار په حقله د انکار په موقع ډېر قسمونه خوړل ـ په قسمونو انکار کول ـ

**سوګندي** :- (سو+ګ+ن+دي) (اس فاع)قسم خوړونکی ـ

**ــــ کېدل**:- قسم خوړل ـ

د ګنـــدي زړهٔ تـــر صبر کړه ناصحه
له رندۍ سره حمید شو سوګندي بیا

**سوګواري** :- (سو+ګ+وا+ري)(وــــ "دسوګ" تر لاندې)

**سوګیال** :- (سو+ګ+یا+ل)(وــــ "دسوګ" تر لاندې)

**سوګي خېل** :- (سو+ګي+خېل)(اس ـ مع)د محمد خېلو یوه څانګه ده چې (ملخ ، ملي زاد) دوړ دي ـ

**سوګیر** :- (سو+ګي+ر)(وــــ څوګیر)

**سول** :- (س+و+ل)(مص) سوځول ـ سوځل ـ سوځېدل ـ

**سول** :- (سو+ل)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د پېزار (بوټ ـ سېنډل ـ وغېره) د ربړ یا د څرمنې وغېره تلې

**سُول** :- (سُو+ل)(اس ـ مذ) حرص ـ طمع ـ از ـ لالچ ـ

**ــــ جن**:- حرص ـ حرصمند ـ سولند ـ سرانې ـ

**ــــ**:- (سو+ل)(اس ـ مذ) هوښ ـ

**سِول** :- (س+و+ل)(انګ ـ صف)(۱) د ښار اوسېدونکو سره تعلق لرونکي په مقابله کښې د فوځي او عسکري ـ (۲) ملکي ـ مالي ـ انتظامي ـ دیواني

**ــــ انجنئیرنګ**:-(ا+ن+ج+ني+ي+ر+ن+ګ)(انګ ـ تر ـ مذ)هغه مهندس چې مدنیت سره تعلق لري ـ لکه چې سړکونه ، پلونه ، عمارتونه وغېره جوړول

**ــــ جج**:-(ج+ج)(انګ تر ـ مذ ـ ج ـ ان) مصنف د دیواني عدالت یو جج چې مالي او دیواني مقدمې فېصله کوي ـ

**ــــ سرجن**:-(س+ر+ج+ن)(انګ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان)په یوه ضلع یا بل کوم لوی هسپتال کښې لوی ډاکټر ـ

**ــــ سروس**:-(س+ر+و+س)(انګ تر ـ اس ـ مذ) ښـــهري ملکـــي او مـــدني ملازمت ـ په مقابله کښې د عسکري او فوځي ملازمت ـ په سرکاري محکمو کښې د ټولو نه د لوې عهدې ملازمتونه خصاصاً هغه کسان

چې د دغې د پاره ئې يو خاص امتحان پاس کړے وي۔
**ـــــ لا** :۔(=+لا)(انګ تر۔اس۔ مذ)ديواني قانون۔هغه قانون چې د مالي وغيره معاملاتو مقدمې فېصله کوي۔
**سولاغ** :- (سو+لا+غ)(اس۔ مذ ۔ج ۔ونه)عک ۔ زرکانړے ۔ کسوتي۔
**سولاغ** :- (سو+لا+غ)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)سلواغه ۔ ډول ۔ بوقه ۔ (د سلواغه بدل شکل دے)
**سولاغه** :- (سو+لا+غ)(اس ۔مو ۔ج ۔غے)ډول ۔بوقه ۔ سلواغه ۔
**سولاق** :- (سو+لا+ق) (اس ۔ مذ)(وــــ سولاغ)

چې د پاسه ښائسته د ننه قلپ ئې
ساهو کار به دے کړه که په سولاق (خ م ب)

**سولاند** :- (س+و+لا+ن+د)(وــــ سولند)
**سولتوک** :- (س+و+ل+تو+ک)(اس۔ مذ ۔ج ۔ونه)د جوارو د وړو وچې کړې توکې چې بلولو د پاره تيارې وي۔
**سولټ** :- (سو+ل+ټ) (صف ۔ مذ) سُنت شوے ۔ مختون۔
**سولډر** :- (سو+ل+ډ+ر)(انګ ۔اس۔ مذ ۔ج ۔ونه)هغه اله چې اور يا په بجلۍ ګرمه کړے شي ۔او ټانکې پرې لګوي۔
**سولن** :- (سو+ل+ن)(صف ۔ مذ ۔مو ۔ ه)کنايه: ډېر زيات شوم ۔ډېر سخت سړے ۔ کروتے ۔ سولند ۔
**ـــــ** :- (سو+ل+ن)(يو ۔اس مع)د يونان يو لوے حکيم ۔فساسفر او مقنن۔ (چې تقريباً ۵۵۸ ق ۔م ۔کښې مړ دے)
**سولند** :- (سو+ل+ن+د)(اس ۔ مذ ۔مو ۔ ه)(۱) حرصي ۔لالچي ۔طامع ۔(۲) د سپي په شان بائي وهونکے ۔سپے خويه ۔
**ـــــ توب** :- (تو+ب) سپي توب ۔د سپي په شان (د خوراک د پاره) بوي وهونکے ۔
**سولندے** :- (سو+ل+ن+د+ے) (اس ۔فا ۔ مذ ۔ج ۔ي ۔مو ۔ي) تلوار ګرندے ۔ عجول ۔جلتي کوونکے ۔سولندے راځخه مه خه ۔
**سولنډے** :- (سو+ل+ن+ډ+ے) (اس ۔ مذ) په زمکه کښې اوږد چاؤد اوږده او نرۍ کنده ۔
**سولو** :- (سو+لو)د سول اضافي ۔يا مجروري شکل ۔
**د ـــــ لرګي** :- (ل+ر+ګي)د لولو لرګي ۔خشاک ۔
**د ـــــ مواد** :- (م+وا+د)هغه څيزونه چې د خشاک کار کوي۔
**سولول** :- (س+و+ل+ؤ+ل)(مص) بوي وهلو والـه جوړول حرصي جوړول ۔ چې د خوراک د پاره هر ځاے بوي وهي ۔"فلانے هر ځاے اروا سولوي" يعني په هر ځاے کښې کست کوي ۔(ق)
**سولولو** :- (سُو+ل+ؤ+ل)(مص)په مړلو سره څۀ څيز کمول ۔لکه ډېر مزل کولو سره د پېزار تلي سولول (فارسي: سائيد :اردو ګهسنا) ۔
**سولنګ** :- (سو+ل+ؤ+ن+ګ) (وــــ سولونه)
**سولونه** :- سو+ل+ؤ+ن)(حمص)په مښلو سره کمؤنه ۔(اردو:ګهسنا) ۔
**سولونکے** :- (سو+ل+ؤو+ن+کے)(اس فا ۔ج ۔کي)په مښلو يا مښود سره د څۀ څيز کموونکے ۔(اردو: ګهسنےوالا
**سوله** :- (س+و+ل)(ق ۔صف)حريص ۔حرصي ۔فلانے ډېر ډېر سُوله سړے دے يعني ډېر حريص دے ۔
**سوله** :- (س+و+ل)(ق ۔اس)کباب ۔
**سُوله** :- (سُو+ل)د صلح بدل شکل دے ۔(وــــ صلح)
**ـــــ خوښوونکے** :-(اس ۔ مذ ۔ج ۔کي)صلح پسند ۔هغه چې جنګ جګړه نۀ خوښوي ۔روغه جوړه او امن خوښوي ۔

**ـــــ غوښتونکے** :-(صف ۔ مذ ۔ج ۔کي)مُصلح ۔چې جنګ جګړه نۀ خوښوي سوله خوښوي
**ـــــ کول** :- (وــــ صلح کول)
**ـــــ کېدل** :- (وــــ صلح کېدل)
**سوله** :- (سو+ل)(اس ۔مو ۔ج ۔لے)(۱) څپر ۔څپری ۔ (۲) بې سببه ۔بې وجهې ۔ هېڅ بې هېڅه ۔
**سُولی** :- (سو+ل+ی) (اس ۔مو) پانسي ۔دار ۔
**ـــــ ته ختل** :پانسي کېدل ۔په سولۍ کېدل ۔په سولۍ وژلے کېدل ۔

منصور سرِ ظاهروۀ سُولی ته وخوت
د خـلا خبــــري کلـــه پـــه ملا شي (حافظ)

**ـــــ ته خېژول** :- (مص تر)دار ته خېژول (خېجول ۔په دار کول پانسي کوي ۔
**د ـــــ تخته** :-(اس ۔مو ۔ج ۔تې)هغه تخته چې سولۍ د لاندې لګېدلې وي د پانسۍ ورکولو په وخت هغه ښکته کړے شي ۔نو پانسي کېدونکې زوړونه شي ۔تخته دار ۔د دار تخته۔
**سولی** :- (سو+ل+ی) (اس ۔مو)سيلۍ ۔تېز باد ۔صر صر ۔طوفان ۔
**ـــــ راتلل** :- (مص تر)سيلۍ راتلل ۔تېز باد يا صر صر راتلل ۔
**ـــــ ورل** :- (وــــ سيلۍ ورل) ساګ ـــــ ورل :(وــــ ساګ سيلۍ ورل)
**سولے** :- (سو+لے)(اس ج)(۱) د سوله اضافي يا مجروري شکل (۲) د سوله (صلح) جمع ۔
**د ـــــ غوښتے سياست** :- داسې سياست چې د صلحې مطالبه کوي ۔صلح پسند سياست ۔
**سولے** :- (س+و+لے)(وــــ سولند)
**سُولے** :- (سو+لے)(اس ۔ مذ ۔ج ۔لي)هغه اله چې جرنده ګرځي پرې جرنده تېروي ۔
**سولي** :- (سو+لي)(صف)حرصي ۔طامع ۔سولنډ ۔
**سولي زئ** :-(سو+لي+ز+ئ)(اس ۔مع)ددې دوه لې ښاخونه دي ۔چې بر سوليزي او کوز سوليزي نوموړي ۔(ددې نامو د لاندې وګورئ) ۔
**سؤلېدل** :- (س+ؤ+لې+د+ل) (مص)نابللے د خيت په طور د چا په دسترخوان حاضرېدل ۔د سپي په شان په خوراک پسې هر ځاے بوي وهل او تلل ۔
**سُولېدل** :- (سو+لې+د+ل)(مص)(۱) ډېر مړلو يا استعمال سره د څۀ څيز کمېدل او په حجم کښې کمے راتلل ۔مښکې کېدل ۔(فارسي :سائيده شدن ۔اردو ۔ګسنا) ۔(۲) استعمال سره د يو څيز کمزورے کېدل يا زړېدل
**سولېدلے** :- (سو+لې+د+لے)(اس فا ۔ج ۔لي)بې بلنې د خوراک د پاره پردي ځاے ته تلونکے د سپي په شان د خوراک بوي وهونکے ۔
**ـــــ** :- (سو+لې+د+لے)(مف ۔ مذ ۔ج ۔لي) مښلے شوے ۔ډېرو مړلو يا استعمال سره کم شوے ۔
**سولېدنګ** :- (س+و+لې+د+ن+ګ)(وــــ سولېدنه)
**سولېدنه** :- (س+ؤ+لې+د+ن) (حمص)د سپي په شان د خوراک د پاره هر ځاے ته تلنه ۔
**سُولېدنه** :- (سُو+لې+د+ن)(حمص)ډېر مړلے کېدلو سره د څۀ څيز کمېدنه ۔ مښلے کېدنه(اردو :ګهسنا)
**سولېدونکے** :- (سو+لې+دو+ن+کے)د سپي په شان نابللے ۔د خوراک د پاره هر چاته تلونکے ۔
**سُولېدونکے** :- (سو+لې+دو+ن+کے)(اس فا ۔ج ۔کي)هغه څيز چې مښودلو سره لړ لړ کمېږي ۔مښلے کېدونکے ۔
**سوليس** :- (سو+لي+س)(ق اس ۔ مذ)د ګيټکو يوه لوبه ۔چې دوه نېغې کرښې راکاږي ۔او په مېنځ کښې يو ګيټکے ودروي ۔او ددغې يوې کرښې نه

دغه ګیتکے په بل ګیتکي ولي او د بلي کربښې نه ئې باهر وباسي - دې لوبې ته سر "سلطان" هم وائي - (داړي یا ډوګانو په شان لوبه ده) -

**سوم** :- (سو+م)(اس - مذ - ج - ونه)سُم - د اسونو وغېره نوکونه -

مـــرتبـــه ئــې تـــر اسمانه ده بلنده
د براق ئې د اسمان د پاسه سوم دي (خوشحال)

**ـــ**:-(سُو+م)(اس - مذ - ج - ونه)د ستنې سورے چې تار پکښې اچوي - سیم -

**سوماترا** :- (سو+ما+ت+را) (اس - مع)سماټرا - جنوب مشرق ایشیا کښ د یو ملک نوم -

**سومباټور** :- (سو+م+با+ټ+ؤ+ر)(صف)کناټور - چې لوے لوے کناټي لري -

**سومباټے** :- (سو+م+با+ټے)(صف - مذ - ج - ټي) (۱) وړوکے ســـوم - وړوکــے سورے - (۲) کناټے - سرین -

**سومباخه** :- (سو+م+با+خ)(اسي - مو - ج - خې) کُونه - مقعد -

**سومبټه** :- (سو+م+ب+ټ)(اس - مو - ج - ټې) کُونه - مقعد -

**سومبروغے** :- (سو+م+ب+رو+غے)(اس - مذ - ج - غي)وړوکے سورے - د وزن / د دېوال وړوکے سورے -

**سومبرے** :-(سو+م+ب+رے) (اس - مـذ - ج - ي)وړوکـے - سـورے - د وزن / د دېوال وړوکے سورے -

**سومبل** :- (سو+م+ب+ل)(مص)(۱) په نېزه وهل - د نېزې یا د بل څۀ ځیز په تېرې څوکې وهل - (۲) (په سومبه) سورے کول -

**سومبلکار** :- (سو+م+ب+ل+کا+ر)(اس - مذ)یو قسم زهر دي - شمبلکار -

**سومبور** :- (سو+م+ب+ؤ+ر) (صف - مذ - مو - ه)غټو کناټو واله - سومباټور -

**سومبوړے** :-(سو+م+بو+ړے)(صف - مذ)سورے سورے - کومبړ کومبړ -

**سُومبه** :- (سو+م+ب) (اس - مو - ج - بې)د لرګي یوه اوږده اله - په سر ئې پرش لګېدلے وي - چې د توپې نالي پرې صفا کوي -

**ـــ**:- (سو+م+ب) (اس - مو - ج - بے)(۱) د اوسپنې هغه اله چې سوري پرې کوي - (۲) د نېزې وغېره د اوسپنې تېرۀ څوکه -

**ـــ**:- (سُو+م+ب) (صف)(۱) خفه او بـوس - سوټ بوټ - (۲) مجازاً هغـه چې چاله دوکه ورکړے شوې وي - غوولے -

**ـــ کول**:- (مجازاً) دوکه ورکول - غئیل -

**ـــ کېدل**:- (مجازاً) دوکه کېدل - غوولے کېدل - غئیلے کېدل -

**سومبې**:- (ســو+م+ب+ې)(اس - مــو)(۱) د کنـاټې ځـاے - مطلـق د ناسـتې ځاے - سمباټے - (۲) کونه - مقعد -

**سومت** :- (سو+م+ت) (اس - مع)د خدرانو یوه څانګه ده - چې جعفردي -

**سومره** :- (سو+م+ر)(وـــ څومره)

**سومنات** :- (سو+م+نا+ت)(اس -مع)د هندوانو یو مشهور مندر - چې په ګجرات کښې ؤ - (سوم په هندی کښې سپوږمۍ تـه وائي) او نـات (ناته) مالـک یا خاوند تـه) - سلطان محمود غزنوي دغه مندر فتح کړے ؤ - او بتـان ئې ورله مات کړي ؤ په دې وجه ورته "بت شکن" وئیلے شي -

دا زما د یار جلوه ده چې لیده شي
لکـــه نمر په صومعه په سومنات (رحمان)

**سونګ** :- (سو+م+ن+ګ)(اس - اس - مذ)لاټبو - لاټبو وهل - لاټبو زني -

**ـــ پول**:- (پو+ل)(انګ - اس - مذ - ج - ونه)د لاټبلو لوې تالاؤ - چې خالص اوږد والے پلن والے (او ژور (جور) والے لري -

**ـــ کستیوم**:-(ک+س+ټو+م)(انګ - اس - مذ - ج - ونه) د لاټبلـو خـاص جـامې - د لاټبلو لباس -

**سون** :- (س+و+ن)(اس - مذ)سوے - سوزش - ونګ -

**سونا** :- (سو+ن)(اس - مذ - ج - ګان)د مرغابو یو قسم -

نــۀ همت د باز لرم نۀ سونا ګیر یم
جټ آسا په چتو سر لکه چېک یم (هجري)

**سونا** :- (سو+ن)

**سونه** :- (س+نا)(ه - اس - مو)سرۀ زر -

**ـــ مکي**:- (م+کي)(ه - اس - مو)یو قسم کاڼے دے - چې لکه د سرو زرو ځلېږي - په دارو کښې استعمالېږي په بجلۍ رېړیو ګانو کښې هم پکارولے شي -

**ـــ**:- (سو+نا)(اس - مو - ج - نې)د سنار نه لږه غټه پېسه ده -

**ســونار** :- (ســو+نا+ر)(ه اس - مــذ - ج - ان)زرګــر - د زرونــه کــالي وغېــره جوړوونکے -

**سوناري** :- (سو+نا+ري)(ه - صف) د سرو زرو په شان رنګ - سُنهري -

**سونتے** :- (سو+ن+تے) (وـــ سونټے)

**سونتي** :- (سو+ن+تي)(اس - مو) منت باري - احسان مندي -

سونتي بــه د نـورو همره نۀ کړه
که په ما باندې نظر مهر د تاوے (خوشحال)

**سونټه** :- (سو+ن+ټ)(صف - مو) پخ - چې تېرۀ نۀ وي - سنته -

**سونټے** :- (سو+ن+ټے) (صـف - مـذ - مـو - ئ)هغـه کـس چـې لاس پښـې ئـې پرېکړې شوې وي -

**ـــ مونټے**:- (مو+ن+ټے) (صف)هغه کس چې لاسونه او پښې ئې پرېکړې شوې وي - مونډے - سونډے -

**سونجه** :- (سو+ن+ج) (ق اس - مو)صحرا - بیابان -

**سونځ** :- (سو+ن+(د)ز)(صفت - مذ - مو - ه)هېبت ناک - وېروونکے -

**سوندخ** :- (سو+ن+د+خ)(اس - مذ - ج - ونه)صندوق - بکس - (د صندوق بـدل شکل دے)

**سوندر** :- (سو+ن+د+ر)(اس - جم)سندور - مشهوره سور رنګې دوائي - زنانه ئې د سر په لار کښې د سنګار په طور هم لګوي -

پـــه حنا منګلـــې سرې، شونډې په پانو
په سوندر به سور پېزوان ئې مونږ به نۀ یو (حافظ)

**سوندر** :- (س+و+ن+د+ر)(اس - مذ - ج - ونه) سخوندر -

**سوندک** :- (سو+ن+د+ک)(اس - مذ)یو قسم شریني ده - چې د پشم په شـان تـار تار او رېښه رېښه وي-

**سونده** :- (سـو+ن+د)(اس - مـو - ج - دے)(۱) بـدګماني - بـد ظنـي - (۲) حسـد - (ظفر)

**ـــ کول**:- بدګماني کول - بد ظني کول -

**ـــ کېدل**:- (مص)بدګماني کېدل - بد ظني کېدل -

**سوندے** :- (سو+ن+دے)(ق اس - مذ - ج - ي) یو قسم بـوټے دے - چې پـاڼې ئې د ګل لاله په شان وي - او جرړې ئې د زرکو خوراک دے -

**سونډ** :- (سو+ن+ډ)(اس - جم) زنجیل - مشهور تېـز بـوي والـه دوائي چې ځینو کتېو (پخکړو) کښې هم اچولے شي - وچ ادرک -

**سونډټ** :- (سو+ن+ډ+ټ) (صف - مو - ه)غټو شونډو واله - غټ شونډے -

**سونډک** :- (سو+ن+ډ+ک)(اس - مذ - ج - ونه)خرتم - د هاتي خرتم - (ه - سونډ)

**ســونډک مونــډک** :- (ســو+ن+ډ+ک+مو+ن+ډ+ک)(اس - مـذ)د ژمـي (جمـی) پـه موسم کښې هغه اخري ورځې - چې پکښې یخ بادونه الوزي - دغې یخ بـاد ته هم سونډک مونډک وائي - انډک سونډک -

**سونړ مونړ** :- (سو+ن+ړ+مو+ن+ړ)(صف - مذ - مو - سونړه مونړه)

چپ ـ خاموش ـ غلے ـ

**ـــ کښېناستل**:ـ چپ چاپ کښېناستل ـ بالکل غلے کښېناستل ـ

**سونډه** :- (سو+ن+ډ)(اس ـ مذ ـ ج ـ سونډګان)(۱) سنډا ـ (۲) مجازاً غټ پټ سړے

**سُونډه** :- (سو+ن+ډ)(اس ـ مو ـ ج ـ سونډې)شونډه ـ لب ـ

**ـــ ور**:ـ(و+ر) (صف ـ مذ ـ مو ـ ه)غټو شونډو واله ـ غټ شونډے ـ

**سونډه**:- (سو+ن+ډ)(اس ـ مو ـ ج ـ ډے)څنډه ـ غاړه ـ ژۍ (جی) ـ حاشیه ـ

**سُونډے** :- (سُو+ن+ډے)(اس ـ ج)د سُونډه جمع ده ـ

**ـــ چیچل**:ـ چاته د شونډو په چیچلو اشاره کول ـ (عموماً د منع کولو اشاره ګڼلے شي) ـ

**سونډے مونډے**:- (مو+ن+ډے)(صف ـ مذ)هغه سړے چې سر ، ږیره بریت هر څۀ ئې کل کړي وي ـ

**سوڼ** :- (سو+ن+ړ)(اس جم)سونډ ـ سنډ ـ

**سوڼ** :- (سو+ن+ړ)(اس ـ صوت)د بوي اوخستو د پاره په پوزه د ساه راښکلو اواز ـ سُڼ ـ

**ـــ سوڼ**:ـ (اس ـ صوت)د بوي اخستو د پاره په پوزه د ساه راښکلو اواز ـ

**ـــ دادم بوي دے ادم نشته**:ـ د دېوانو ښاپېرو په قصو کښې يو قول دے ـ چې ښاپېرو بني ادم پټ کړے وي ـ ديو راشي بوي اخلي او وائي چې د بني ادم بوي راځي ـ خو بني ادم نۀ ښکاري ـ

**ـــ کول**:ـ (مص تر)بوېول ـ بوينول ـ بوي اخستل ـ

ـــ:ـ (سو+ن+ړ)(اس صوت) په زور سره د پوزې د قڼ ايستلو آواز ـ

**ـــ کول**:ـ (پوزه) پوزه صفا کول ـ د پوزې نه په زور سره د قڼ اواز ايستل ـ (چې اواز ترې پيدا شي) ـ

**ـــ وهل**:ـ (ق)(وـــ سوڼ کول)

ـــ:ـ (سو+ن+ړ)(اس صوت) د خولې نه ترې شان وتے اواز ـ چوڼ چو ـ

**ـــ کول**:ـ د جواب ورکولو جراءت کول ـ عموماً نفي کښې استعمالېږي ـ د وېرې نه کش نۀ کول د جواب ورکولو جراءت نۀ کول ـ په جواب کښې معمولي شان اواز هم نۀ وښکل لکه :هغه دې زما مخ کښې سوڼ خو وکړي ـ

**ـــ نه ختل**:ـ(مص تر)ډېر نرے يا سپک شان اواز (هم) نۀ ختل د وېرې يا د ډېرې ملامتې نه د زورنې يا د الزام په جواب بالکل چپ پاتې کېدل ـ

**سوڼ** :- (سو+ن+ړ)(اس صوت) په پوزه کښې د څۀ څيز د راښکلو اواز

**ـــ کول**:ـ(ک+ؤ+ل)(مص تر)په پوزه کښې نسوار راښکل ـ

**سوڼا** :- (سو+ن+ړا)(پ اس ـ مذ)په سوڼا کښې کنځل کوي ـ (قول)

**سوڼکا** :- (سو+ن+ړ+ک)(وـــــ څوڼکه)

**سوڼل** :- (سو+ن+ړ+ل)(مص)(وـــ سوڼل کول)

**سوڼن** :- (سو+ن+ړ+ن)(صف ـ مذ ـ مو ـ ه ـ ق)دروغجن ـ دروغژن ـ

**سوڼول** :-(سو+ن+ړ+ؤ+ل)(وـــــ څوڼول)

**سوڼول** :-(سو+ن+ړ+ؤ+ل)(مص)(۱) پوزه سوڼ کول ـ د پوزې نه په زور سره قڼ ايستل ـ (۲) نسوار وغېره په پوزه راښکل ـ (۳) په پوزه کښې اوبۀ اچول ـ اوبۀ سوڼول ـ (دا لغت اضداد دے) ـ

**سوڼه** :- (سو+ن+ړ)(وـــــ څوڼه)

**سوڼه** :- (س+و+ن+ړ)(اس ـ مو ـ ج ـ ړې)پېغله ـ باکره ـ

**سوڼهار** :- (سو+ن+ړ+ها+ر)(اس صوت)هغه اواز چې د منډې يا د خوب په وخت د پوزې نه راوځي ـ

**سوڼي** :- (سو+ن+ړي)

**سوڼے** :- (سو+ن+ړے)(وـــ سوڼت)

**سوڼے** :- (سو+ن+ړے)ويشتل ـ (۱) دروغ وئيل ـ (۲) لاپې ويشتل ـ

**سوڼي** :- (سو+ن+ړي)ويشتل (ق) دروغ وئيل ـ

**سوڼے** :- (سو+ن+ړے)(صف ـ مذ ـ مو ـ ی)هغه کس چې د ساه اخستو په وخت ئې د پوزې نه اواز راووځي ـ

**سوڼېدل** :- (سو+ن+ړې+د+ل)(مص)(۱) ساه سره د پوزې نه اواز راايستل د اودۀ سړي د ساه اخستو په وخت د پوزې نه اواز راوتل ـ (۲) (ق) خرړېدل ـ عموماً د مرې نه اواز ايستلو ته وائي ـ

**سوڼېدنګ** :- (سو+ن+ړې+د+ن+ګ)(وـــــ سوڼېدنه)

**سوڼېدنه** :- (سو+ن+ړې+د+ن)د (اودۀ سړي) ساه سره د پوزې نه نرے شان اواز وښکنه ـ خرړېدنه ـ

**سوڼېدونکے** :- (سو+ن+ړې+دو+ن+کے)هغه کس چې په خوب کښې د ساه سره د پوزې نه نرے شان اواز وباسي خرړېدونکے ـ

**سونسو** :- (سو+ن+سو)(وـــ څونسو)

**سونکا** :- (سو+ن+کا)(اس ـ مؤ)سونګهارے ـ اواز ـ چې ژړا ورسره وي ـ

**سونګ** :- (س+ؤ+ن+ګ)(اس ـ مذ)(۱) سوز ـ سوزه ـ سوځېدنه ـ (۲) هغه مائع څيزونه چې د بلولو د پاره پکارولے شي ـ

**سونګ** :- (سو+ن+ګ)(اس ـ مذ)(۱) د ماشومانو نرۍ نبنتې نبنتې ژړا ـ ډونګ ـ (۲) په پوزه کښې د ژړلو اواز ـ (۳) مات مات اواز ـ چې صفا نۀ وي بړ بړ ـ

**ـــ سونګ**:ـ(سو+ن+ګ) (اس ـ مذ)د ماشومانو د نرۍ ژړا اواز ـ ډونګ ډونګ سونګ سونګ ـ

**سنګټ** :- (سو+ن+ګ+ټ)(اس ـ مذ)(۱) ژړا ـ جړا ـ ژړېدنه ـ جړېدنه ـ ګريه (۲) هغه ډوډۍ چې په کاني باندې په ګرمو ايرو پخې شي (ق) ـ (۳) هغه ډوډۍ چې په تنور کښې پاتې شي او چې پاپړ شي ـ

**ـــ مونګټ**:ـ(مو+ن+ګ+ټ)(اس ـ ص ـ مو ـ سونګټه ـ مونګټه) غونج مونج ـ وچ کلک شوے ـ ګرونجے ـ ګرونجے ـ

**سونګرے** :- (سو+ن+ګ+رے)(اس ـ مذ ـ ج ـ سونګرے)د يو قسم ګيا نوم دے ـ

**سونګل** :- (سو+ن+ګ+ل)(مص)(۱) په نرې اواز ژړل (جړل) ـ (۲) په داسې اواز ژړل چې د پوزې نه راووځي ـ رينګه رينګه کول ـ

**سونګن** :- (سو+ن+ګ+ن)(صف ـ مذ ـ مو ـ ه) هر وخت ژړېدونکے ـ (جړېدونکے) هر وخت رينګه رينګه کوونکے ـ

**سونګوټ** :- (سو+ن+ګ+و+ټ)(صف ـ مذ ـ مو ـ ه) ګرونجن ـ غونجن ـ کوت واله ـ

**ـــ کښېناستل**:ـ خفه مرور کښېناستل ـ

**ـــ مونګوټ**:ـ(مو+ن+ګ+ؤ+ټ)(صف ـ مذ ـ مو ـ ه ـ ه)بالکل خفه مرور ـ غونډ مونډ ـ منجمد ـ

**سونګور** :- (سو+ن+ګو+ر)(ق ـ اس ـ مذ) يو قسم بوټے دے ـ ګلخوره ـ سونګرے ـ (په فارسۍ کښې ورته "ګربه خورک" وائي)

**سونګه** :- (سو+ن+ګ)(اس ـ مو) (۱) پوزه ـ

د نسوارو خپلې سونګې وي ـ (متل)

(۲) د غر داسې څوکه چې د پوزې په شان راوتې وي ـ

**سُونګه** :- (سو+ن+ګ)(ق ـ صف) چيت پوزے ـ

**ـــ بونګه**:ـ (بو+ن+ګ) په پوزه کښې يا بړ بړۍ خبرې چې په پوه کښې نۀ راځي

(لکه:زۀ ستا په سونګه بونګه باندې هېڅ پوه نۀ شوم)۔(ق)

**سونګهار** :- (سو+ن+ګ+ها+ر)(اس صوت مذ) په پوزه کښې د ژړلو (جړلو) مسلسل اواز ۔سونګا ۔

**ــــ کول**:۔ په پوزه کښې مسلسل ژړا کول ۔سوڼ سون کول ۔

**سونګۍ** :- (سو+ن+ګ+ۍ)(اس ۔ مو)د سونګے تصغیر ۔خاورینه کاسه ۔ وړوکے تغار ۔

**سونګے** :- (سو+ن+ګے)(اس ۔ مذ ۔ج ۔ګي)پیروي کوونکے ۔تابع ۔

**ــــ**:۔ (سو+ن+ګے)(صف ۔ مذ ۔مو ۔ۍ)(۱) چیت پوزے یا پلن پوزے ۔ (۲) پوز پرېکړے ۔

**ــــ**:۔ (سو+ن+ګے)(اس ۔ مذ ۔ج ۔ګي)لویه خورینه کاسه ۔تغار ۔

**سُونګے** :- (سُو+ن+ګے)(صف ۔ مذ ۔مو ۔ګۍ)مندرے او ګډ سرے (ق) هغه ګډه چې غوږونه ئې واړۀ واړۀ وي ۔(ق)

**ــــ مونګے**:۔ (مو+ن+ګے)(صف ۔ مذ ۔مو ۔ئ۔ۍ)(۱) پلن پوزے ۔پت پوزے ۔هغه سړے چې پوزه ئې ډېره پلنه وي ۔(۲) هغه سړے چې پوزه ئې پرېکړې شوې وي

**سونګېدل** :- (سو+ن+ګې+د+ل)(مص)داسې خبرې کول چې بل پرې نۀ پوهېږي ډونګېدل ۔بړ بړ کېدل ۔

**ــــ**:۔ (سو+ن+ګې+د+ل)(مص)په پوزه کښې ژړل (جړل) رینګه رینګه کول سوڼ سوڼ کول ۔

**سونګېدل** :- (سو+ن+ګې+د+ل)(اس ۔فا ج ۔لي)په پوزه کښې ژړېدلے ۔

**سنګېدنګ** :- (سو+ن+ګې+د+ن+ګ)(وـــ سونګېدنه)

**سونګېدنه** :- (سو+ن+ګې+د+ن)(حمص)په پوزه کښې ژړا کونه ۔رینګه رینګه کونه

**سونګېدونکے** :- (سو+ن+ګې+دو+ن+کے)(اس فا ۔ج ۔کي)په پوزه کښې ژړا کوونکے ۔سوڼ سوڼ کوونکے ۔رینګه رینګه کوونکے ۔

**سونه** :- (سو+ن)(وـــثونه)

**ــــ**:۔ (سو+نَ)(اس ۔مو ۔ج ۔نے)د مرغابو یو قسم دے ۔شین سرې ۔

**سونه** :- (س+ۆ+ن)(حمص)سوځېدنه ۔سوز ۔

**سونے** :- (سو+نے)(صف)هغه ګډ چې غوږونه ئې واړۀ واړۀ وي سونګے ۔

**سووان** :- (سو+وا+ن) (اس ۔ مذ ۔ج ۔ونه)سوهان ۔د لوهارانو هغه اله چې د اوسپنې (یاد لرګي) سطح پرې هوارۍ چوسار ۔

**سووان** :- (سو+وا+ن) (صف مذ ۔مو ۔نه)اسان ۔سهل ۔

**سوواني** :-(سو+وا+ني)(اس ۔مؤ) اسانتیا ۔اساني ۔

**سووُم** :- (سو+وَ+م)(وـــثووم)

**سوونکے** :- (سو+وو+ن+کے)(اس ۔فا ۔ج ۔کي) سوونکے ۔

**سوونه** :- (سو+وُو+ن)(اس عدد) (۱) په سلګونو ۔ (۲) ډېر زیات ۔ګڼ شمېر

**سووه** :- (سُو+و)(اس ۔مو)مشهوره سبزي ۔یو قسم ساګ دے ۔

**سوویټ** :- (سو+وي+ي+ټ) (رتر ۔صف)جرګه ۔شوروا ۔

**ــــ حکومت**:۔(ح+کو+م+ت) (رع تر ۔اس ۔مع)په جرګه او شوريٰ سر د حکومت کولو نظریه ۔شوريٰ طرز حکومت ۔

**ــــ یونین**:۔(سو+وي+ي+ټ+یو+ن+ي+ن)(انګ تر ۔اس مع)شوروي روس ۔

**سوویټي** :-(سو+وے+ټي)(انګ ۔صف) جرګتي یا شورائ ۔شوروي ۔

**سوو** :- (س+و)(صف ۔مو)سُم ۔(د اس یا د خر وغېره) ۔

**سوه** :- (س+و)(اس ۔مو ۔ج ۔سوے)مشهور ځناور ۔خرګوش ۔

**سوها** :- (سو+ها)(صف)فائده من ۔کار امد ۔پکارېدونکے ۔لکه: دا څیز د سوها نه دے ۔دا څیز په سوهانه راځي ۔

**ــــ سُوها**:۔ (اس ۔ مذ)یو قسم سور رنګے توکے ۔

**ــــ**:۔ (سو+ها) (ق ۔اس صوت)هغه آواز چې د سوې د ښکار د پاره د سپي د ورپرېښودو په وخت کولے شي ۔

**سوهاک** :-(سو+ها+ک)(اس ۔ مذ)د کومې ناجوړتیا نوم دے یو مرض دے

**سوهان** :- (سو+ها+ن)(اس ۔ مذ ۔ج ۔ونه)د فولادو هغه اله چې نرۍ نرۍ چېرې لري په دې باندې لرګي وغېره هوارولے شي ۔چوسار ۔سووان ۔

**ــــ کار**:۔(کا+ر)(ف تر ، اس ۔ مذ ۔ج ۔ان)هغه کاریګر چې په سووان سره د لرګي وغېره مخ هوارولو کار کوي ۔

**ــــ کاري**:۔ (کا+ري)(اس ۔مو)په سوهان کار کؤنه ۔سوهان سره (د څیزونو) مخ هوارونه ۔

**ــــ کول**:۔(مص تر)سوهان سره د لرګي وغېره د څیزونو مخ هوارول ۔یا سولول ۔

**ــــ کېدل**:۔ (مص تر)د څۀ څیز مخ (سطح) په سوهان سره هوارېدل یا سولېدل

**سوهانجړ** :- (سو+ها+ن+ج+ړ)(اس ۔جم) سپین مرچ ۔

**سوهان خېل** :- (سو+ها+ن+خېل)(اس مع)د حېدر خېلو یو ښاخ دے بیا مندو خېل ، او مشینرۍ د سوهان خېلو څانګې دي ۔

**سوهانګے** :- (سو+ها+ن+ګے) (اس ۔ مذ ۔ج ۔ګي)د سوهان تصغیر ۔وړکے سووان

**سوهانه** :- (سو+ها+ن)(صف)اسان ۔سووان ۔سهل ۔

**سوهړه** :- (سو+ه+ړ)(اس ۔مو ۔ج ۔ړې)بې ربط خبره ۔کجاوې ۔بړ بړ بې سلیقې خبرې ۔

**سوهم** :- (سو+ه+م)(وـــثوهم)

**سوهمره** :- (سو+ه+م+ر)(وـــثومره)

**سوهن** :- (سو+ه+ن)(وـــسوهان)

**سوهېدل** :- (سو+هې+د+ل)(مص) (۱) پرېشانه کېدل ۔غمجن کېدل ۔نو لېدل ۔(۲) پسخېدل ۔زهرېدل ۔څۀ داسې څیز پسې خفه کېدل ۔چې زړۀ ئې ورته کېږي ۔خو په لاس نۀ ورځي ۔

**سوهېدلے** :- (سو+هې+د+لے)(اس ۔فا ۔ج ۔لي)پرېشانه او غمجن شوے ۔مشوش څۀ داسې (د خوراک څیز) پسې نولېدل او مانده شوے کوم چې ویني ، او زړۀ ئې ورته اوشي خو په لاس نۀ ورځي ۔ژبې کېدل ۔

**سوهېدنګ** :- (سو+هې+د+ن+ګ)(وـــ سوهېدنه)

**سوهیدنه** :- (سو+هې+د+ن)(حمص)پسخېدنه ۔څۀ څیز پسې نولېدنه ۔پرېشانه کېدنه ۔غمجن کېدنه ۔

**سوهېدونکے** :- (سو+هې+دو+ن+کے)(اس فا ۔ج ۔کي)پسخېدونکے ۔څۀ داسې څیز پسې نولېدونکے چې په لاس نۀ ورځي ۔پرېشانه کېدونکے ۔غمجن کېدونکے ۔

**سوء** :- (س+ۆ+ء) سُم (د اس یا خر وغېره) -سوه ۔

**سوے** :- (س+وے)(اس ۔ مذ ۔ج ۔ي) سوز ۔سوځېدنه ۔سوزنه ۔سوزے ۔نوکدارې (کاکړ) ۔

**ــــ احستل**:۔ (رق)د سختې یخنۍ له کبله د نوک سوے کول نکرارې (ځدران)

**ــــ کول**:۔ سوز کول ۔سوځېدل ۔د سوځېدو دړد کول ۔

**ــــ زړۀ**:۔ رحم ۔ترس ۔مهرباني ۔

**سوے** :- (س+وے)(اس ۔ مذ ۔ج ۔وي)(۱) سکوے ۔هغه لرګے چې څۀ برخه ئې سوے وي ۔

چــې په زړۀ ئې تل د غم لمبې پلېږي
د کامګار صورت سوز کا لکه سوے (کامګار)
ستا له لوریه به مخ بل پلو ته نۀ کړم
کـــه مــــې ولي همېشه په بلو سوو (حسېن)

(۲) سوځېدلے ـ سوخته شوے ـ

ـــ **الوے**:ـ (ا+ل+و+ے) (صف ـ مذ ـ ج ـ سوي لوي)مجازاً د غصې ـ ګېلې شکايت نه ډک ـ

ـــ **ځيګر** :ـ (د)زي+ګ+ر)(و ــــ سوے زړۀ)

ـــ **زړۀ**:ـ(ز+ړ)چې زړۀ ئې سوځېدلے وي ـ چې ډېر زيات تکليف يا دُک د چانه ورته رسېدلے وي ـ د غصې يا شکايت نه ډک ـ

ـــ **ستورے**:ـ (رق)(اس ـ مذ ـ ج ـ سوي ستوري)شهاب ـ هغه ستوري چې د شپې تېزه رڼا وکړي ـ يو طرفته شتى شي او بيا غيب شي ـ پښتو کښې ورته ستورے ماتېدل وائي ـ اصلاً دا ستوري نۀ دي بلکې د ستورو ټکړي دي ـ چې د لکونو په شمېر کښې په فضا کښې ګرځي ـ په دې کښې ځينې د زمکې نه چاپېره د هوا په دائره کښې راننوځي ـ نو هوا سره مښود (رګړ) په وجه اوپرے بل شي ـ لمبه شي او بيا وسوځي ـ

ـــ **سکور**:ـ (س+کو+ر) ښېخي سوځېدلے ـ چې سکارۀ شوے وي ـ

ـــ **لوغړن**:ـ (وـــ سوے سکور)

ـــ **مرغه**:ـ (م+ر+غ)بدبخته ښځه ـ کوټه کربابه ـ

ـــ **ياکوت**:ـ (رق) (يا+کو+ت)(اس ـ مذ)د يوقوتو په شان ارزان بيعه کاڼے دے ـ (ياکوت د يوقوت بدل شکل دے)

ـــ **زړۀ**:ـ(وــــ سوے زړۀ)

**سوے** :- (س+و+ے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ان)نۀ سوي ـ نر سويه ـ نر خرګوش ـ

ـــ **غلے کېدل**:ـ (وــــ سويه ـ غلے کول)

**سوي** :- (سو+ي) (ق)سره ـ سويه (خرګوش) سوے ـ

ـــ **ازغے**:ـ (ا+ز+غـ+ے)(ق اس ـ مذ ـ ج ـ غي)يو قسم سپين ازغن بوټے دے ـ چې اوښانو له ئې ورکوي ـ

**سوي** :- (س+و+ي)د "سوے" اضافي او مجروري حالت ـ

د ـــ **لاس په شان ساتل**: په ډېر زيات حفاظت ساتل ـ لکه څنګه چې سوے لاس چې په خيال او حفاظت ساتلے شي ـ

**سويپر** :- (س+وئ+پ+ر)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان ـ مو ـ ه) ځاے جارو کوونکے ـ جارو کښې ـ جارو مار ـ صفائي کوونکے ـ جمعدار چوړے

**سويت** :- (سو+ي+ت)(صف ـ مذ ـ ج ـ ه)اسان ـ سهل ـ سوان ـ

**سويت** :- (سو+و+ے+ت)

**سويټ** :- (سو+و+ے+ټ)(وــــ سويټ)

**سويټر** :- (سو+وي+ټ+ر)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) هغه بنيان چې د قميص د لاندې اغوستے شي چې د بدن خولې راکاږي ـ (۲) ګرم بنين ـ چې د وړۍ نه جوړ شوے وي ـ د قميص د پاسه اغوستے شي ـ (عام طور سره دې لفظ (س+وي+ټ+ر) کولے شي ـ

**سويټزم** :- (سو+ي+ټ+ز+م)(انګ ـ اس ـ ج ـ ونه) جرګه يا شورائي نظريه ـ شوروي نظريه ـ

**سويټسم** :- (سو+وي+ټ+س+م)(وــــ سوۀټزم)

**سويد** :- (سو+ي+د)(اس ـ مذ)د غنمو هغه پتے چې نوے راټو کېدلے وي او زرغن شو وي ـ وريښکه ـ

**سويدا** :- (سو+وي/و+ے+دا)(ع ـ اس ـ مذ)هغه تور شان داغ چې د زړۀ د پاسه وي د زړۀ تور داغ ـ

**سوېدل** :- (سو+وې+د+ل)(رق ـ مص ـ (ورډک)د سختې يخنۍ له کبله د نوک سوے کول نکراړے (ځدران) سوے اخستل ـ

**سوېډن** :- (سو+وې+ډ+ن)(اس ـ مع)يورپ په مغرب کښې د يو ملک نوم ـ

**سوېډنے** :- (ســـو+وې+د+نــے)(اس ـ مــذ ـ ج ـ نــي/نے)د ســـوېډن ملــک اوسېدونکے ـ

**سويز** :- (سو+وي+ز)(سُ+وي+ز)(اس ـ مع)د مصر د ملک قطب طرفته يو وړوکے شان ښار ـ

د ـــ **نهر**:ـ (ن+ه+ر)(اس مع ـ مذ)د مصر نور (نمر) خاتۀ طرفته مصنوعي کنستے شوے نهر ـ چې لوې لوې جهازونه پکښې تېرېږي ـ

**سويشل** :- (سو+وې+ش+ل)(مص) لوشل ـ

**سديق** :- (س+دي+ق)(ع ـ اس ـ مذ)ستو ـ ستوان ـ

**سويکه** :- (سو+ې+ک)(اس ـ مو ـ ج ـ کے)ځنګلي منږک ـ

**سويلنګ** :- (س+و+ل+ن+ګ)(انګ ـ اس ـ مذ)پړسوب ـ پړسېدنه ـ ورم ـ

**سويلى** :- (س+وې+ل+ى)(وــــ سهيلى)

**سويلين** :- (س/سي+وي+ل+ئ+ن) (انګ ـ صف)هغه سړے يا محکمه چې شهري او مدني ژوند يا ملازمت سره تعلق لري (په مقابله کښې د عسکري او فوځ) ـ

**سويم** :- (س+وي+م)(وــــ شويم)

**سويه** :- (سو+يَ)(اس ـ مو ـ ج ـ يې)خرګوش ـ مشهور ځناور ماده سويه ـ

ـــ **غلے کول**:ـ کنايه :څۀ غرض يا مقصد په زړۀ کښې پټ ساتل ـ

ـــ **کورنۍ**:ـ (کو+ر+ن+ى)هغه سويه (خرګوش) چې کورونو کښې ساتلے شوې وي ـ په مقابله کې صحرائي يا ځنګل سوے ـ

**ســويه** :- (س+وي+يَ)(رق ـ اس ـ مـو ـ ج ـ سے)معيار ـ لکه د ژوندانۀ سويه اوچتول

**سۀ** :- (س) (حرف)(۱) د څه مخفف دے ـ لکه هغه سۀ واخله يعني د هغۀ نه واخله ـ (۲) څۀ ـ متعلق ـ

**سهه** :- (س+ه)(وــــ ساه)

**سه** :- (س+ه)(وــــ څۀ) (او نور الفاظ)

**سۀ شان** :- (س+شا+ن) وــــ څۀ شان)

**سۀ ناسۀ** :- (س+نا+س)(وــــ څۀ ناڅۀ)

**سۀ وخت** :- (س+و+خ+ت)(وــــ څۀ وخت)

**سه** :- (س+ه)(ف ـ اس عدد)درې ـ

ـــ **برګه**:ـ (ب+ر+ګ) (ف ـ اس ـ مو ـ ج ـ برګې)د يو درے پاڼيز ګل نوم ـ

ـــ **بعد**:ـ (ب+ع+د)(عف تر)درے لرې والې يعني اوږدوالے ـ پلن والے او ژور والے (ځور) (په عربۍ کښې ورته العباد ثلاثه وائي) ـ

ـــ **پائۍ**:ـ (پـا+ئ)(ف تـر ـ اس ـ مـو ـ ج ـ نـې)(۱) هغـه درے ښـپيزه ـ چـې د مدرسو توره تخته پرې کښېښودې شي ـ (۲) درے ښپيزه اډه ـ چې څۀ څيز پرې کښېښودے شي ـ

ـــ **پر**:ـ (پ+ر)(ف تر ـ صف)هغه غشے چې درې وزرې لري ـ

ـــ **پهلو**:ـ (پ+ه+لو)(ف تر ـ صف)درې اړخيز ـ هغه څيز چې درې اړخه يا بازوګان وغيره لري ـ

ـــ **حرفي**:ـ (ح+ر+في)(اس ـ مو ـ ج ـ فې)(۱) درې حروفونو يا تورو واله (۲) د نظم يو قسم چې پکښې درې مصرعې وي (پنجابۍ کښې داسې شاعري

ډېره عامه ده.

**ـــ روزه**:- (رو+ز)(ف تر - صف)(۱) هغه اخبار یا بل کوم څیز چې هر درې ورځې پس ووځي یا راځي - درې ورځنی ! - (۲) د دریو ورځو.

**ـــ شاخ**:- (و ـــ سهٔ ښاخ)

**ـــ شنبه**:- (د نهې ورځ - د پیر (ګل) د ورځې نه وروستو راتونکې ورځ.

**ـــ ښاخ**:- (فا/شا+خ) (ف تر)درې موالید یعني حیوانات نباتات او جمادات

**ـــ فرزند**:- (ف+ر+ز+ن+د)(ف تر)درې موالیده - یعنې حیوانات نباتات او جمادات.

**ـــ فصله**:- (ف+ص+ل)(ف تر - اس - صف)

**ـــ کرّر**:- (ک+ر+ر)(ف تر)دریم باره - په دریم ځل - په دریم کرت - (عموماً په شاعری کښې چې یو شعر (مکرّر) په اواز دوه ځله ووئیلے شي نو بیا وئیلو د پاره ورله "سهٔ کرر" اواز ورکولے شي.

**ـــ ګوشه**:- (ګو+ش)(ف تر - صف)درې ګټیز - دریو ګوټونو واله.

**ـــ ګونه**:- (ګو+ن)( ف تر - صف)(۱) درې چنده - یو په درې - (۲) درې قسمه ، درې رنګه.

**ـــ ګوهر**:- (ګو+ه+ر)(ف تر)(و ـــ سه فرزند)

**ـــ ماهي**:- (ما+هي)(ف تر - صف)(۱) درې میاشتنیز - درې میاشتنی. هغه کار چې هر درې میاشتې پس کولے شي - (۲) هغه مجله یا رساله چې درې میاشتې پس راووځي.

**ـــ ماهي امتحان**:-(ا+م+ت+حا+ن)(ف تر - اس - مذ - ج - ونه)هغه امتحان چې هر درې میاشتې پس اخستے شي - درې میاشتنیز امتحان.

**ـــ مرتبه**:- (م+ر+ت+ب)(ف تر)درې مرتبې - یعنې هلکوانه ، ځواني او بوډاتوب.

**ـــ منزله**:- (م+ن+ز+ل) هغه عمارت یا کور وغیره چې لاندې باندې درې چتونه لري - درې چتیز.

**ـــ نوبت**:- (نو+ب+ت) (ف تر)(۱) درې نوبتونه - پخواني وختونو کښې به د باچاهانو او امراګانو په دروازه یو ورځ شپه کښې درې ځله نوبت غږولے شو - (سلطان سنجر ددې پنځهٔ وخته مقرر کړل - (۲) د ژوند درې وختونه - هلکوانه ځواني او بوډاتوب.

**سها** :- (سُ+ها)(ف اس - مذ)د یو ورو کي شان ستوري نوم دے چې د بنات النعش په جومیک کښې شامل دي چې څوک دا ستورے ووینې نو د هغهٔ نظر تېز ګڼلے شي.

چې سها پاس د غر کاندې تحقیر (خوشحال)

ـــ:- (سُ+ها)(اس - مو)یو قسم کېړه - سُوها.

**سهار** :- (سَ+ها+ر)(اس - مذ - ج - ونه)سحر - صبحدم.

**ـــ ګا**:-(ګا)(ب تر - اس)صبح دم - سحر ګاه.

**ـــ مال**:-(ما+ل)(اس - ظرف)د سحر وخت - سحر وختي.

**ـــ ګون**:- (ګو+ن)(اس - مذ)صبح ګاه - سهار ګاه.

**سهارنی**:- (س+ها+ر+ن+ی)(صف - مو) د سحر وخت سره تعلق لرونکے - د سحر.

**ـــ جریده**:- (ج+ري+د)(فپ تر - اس - مو - ج - ے)هغه جریده یا رساله یا خبار چې د سحر په وخت چاپ کېږي او خورېږي.

**سهارنے** :- (س+ها+ر+نے)(صف - مذ - ج - نې)د سحر وخت سره تعلق لرونکے.

**ـــ اخبار**:- (ا+خ+با+ر) (پ ف تر - اس - ج - ونه)هغه اخبار چې دسحر په وخت شائع کېږي.

**سهاره** :- (س+ها+ر)(ه - اس - مو - ج - رې) (۱) اسره - تکیه - ټیک - اړم.

(۲) مراد - وسیله - ذریعه.

**سهاګه** :- (سُ+ها+ګ)(ه - اس - مو - ج - ګې) تنکار - تنکار - یو قسم معدني ماده ده چې د مالګې یا د پټکرې په شان وي - په دارو کښې هم استعمالېږي او زرګران ئې هم د زر په صفا کولو کښې پکاروي.

**سهام** :- (س+ها+م) (ع - اس - ج)د سهم جمع - ده غشي - برخې.

ډېر ځوانان غاړه غړی شول په دا جنګ کښې

کــــه تقصیـر نــــهٔ ؤ ، د نــورو د سهام (خوشحال)

**سه تاؤ** :- (س+ه+تا+ؤ)(ق - اس - مذ)یو قسم پخوانې اوږد چقمقے ټوپ.

**سهراب** :- (س+ه+را+ب)(اس - مع)د ایران د مشهور پهلوان رستم ، د زوي نوم - چې دے هم لوے پهلوان ؤ - خو مور د پلار نه پټ لوے کړے ؤ د ایران او توران په جنګ پلار او زوي یو بل نهٔ پېژندہ اخر د پلار د لاسه په یو خاص داؤ کښې اوژلے شو.

**سهروردي** :- (س+ه+ر+و+ر+دي)(اس - مع)سهرورد په عراق کښې د یو ښار نوم دے - شیخ شهاب الدین سهروردي ددې ښار اوسېدونکے ؤ - ځکه د صوفیانو یو مشهورې ډلې ته سهروردیه وائي.

**سهره** :- (س+ه+ر)(و ـــ ځهره)

ـــ:- (س+ه+ر)(۱) په تارونو پئیلو شوو ګلونو نه جوړ شوے داسې څیز چې د وادهٔ د زلمي او د ناوې په سر تړلے شي - چې د ګلونو لړۍ ئې په مخ او په سینه رازوړندې شي - اوس پکښې زرین تارونه بلکې نوټونه هم لګولے شي - (۲) هغه نظم چې (عموماً قافیه ئې "سهرا" وي) د نکاح په وخت د وادهٔ د زلمي د سهرې تړلو په وخت وئیلے شي.

**ـــ تړل**:- د ګلونو سهرا په سر تړل - د وادهٔ زلمے جوړېدل - یا جوړول.

**ـــ دووینم**:-(دعائیه جمله) مطلب دا چې د وادهٔ سهره وتړې وادهٔ دې ووینم.

**سهره لیکل** :- هغه خاص نظم لیکل چې د وادهٔ د زلمي د سهرې تړلو په وخت وئیلے شي ددې نظم قافیه هم عموماً "سهره" وي او عموماً لس نه تر شلو پنځویشتو پورې شعرونه لري.

**ـــ وئیل**:- د وادهٔ په موقع د وادهٔ زلمي د نکاح په وخت سهره وتړي نو شاعران یو خاص نظم چې سهره بللے شي وائي.

**سهل** :- (س+ه+ل)( صف - مذ - مو - سهله)(۱) آسان - د ګران ضد (۲) سپک - کم قدره

**ـــ انګاري**:-(ا+ن+ګا+ري)(ف تر - اس - مو - ج - ی)د اسانتیا نه کار اخستل - مجازاً په څهٔ کار ګښې سستي - ناراستي.

**ـــ کول**:- ناراستي کول - په څهٔ کار کښې سستي کول.

**ـــ ګو**:-(ګو) هغه شاعر چې اسان شعرونه وائي - یعنې داسې شعرونه چې هر څوک پرې په اسانه پوهېدے شي - ګران ګران ټکي او بعید تشبیهونه ، استعارې وغېره نهٔ استعمالوي.

**ـــ ممتنع**:- (م+م+ت+ن+ع)(ع تر - مذ)(۱) دومره اسان چې ددې نه زیات اسان وئیل ممکن نهٔ وي - (۲) هغه شعر چې په ظاهري نظریه اوربدو اسان ښکاري خو په اصل کښې ئې معنٰې ګرانې وي.

**په ـــ**:-(فپ تر - تف)(۱) په اسانه - (۲) ارزان.

پــه لکـــونـــو پــه کروړونو د بها ده

د یوسف غوندې به سهل فروخته شوې (خوشحال)

**سهل** :- (س+ه+ل)(مص)زغل - برداشت کول - تحمل کول.

**سهلنه** :- (س+ه+ل+ن)(حمص)برداشت - زغم.

**سهلے** :- (س+ه+لے)(اس - مف - تر - ج - لي)زغملے - برداشت کړے.

**سهم** :- (س+ه+م)(ع - اس - مذ - ج - ونه)(۱) غشے - تیر.

سماء سم نهٔ کړ زما سهم هدف ته
پـه ستم ئې خمیده کړم تر کمانه (حافظ)

(۲) حصه ـ

**ـــ اخستل**:۔(مص تر)حصه اخستل ـ برخه اخستل ـ

**ـــ تلل**:۔غشے لګېدل۔

څوک چې سلا په مینه خم کمرکمان شۀ
د دعــا سهــم ئــې سم ځي تر هدفه (حافظ)

**ـــ گر**:۔(گ+ر)(عف تر ـ اس ـ ج ـ ان ـ مو ـ ه)غشي جوړوونکے ـ

**ـــ د شرکت**:۔ په شرکت کښې برخه ـ حصه ـ

**سهم** :- (س+ه+م)(ف ـ اس ـ مذ)ویره ـ ډار ـ خطر ـ هیبت ـ رعب۔

غټ ورته کتے نۀ شي هرګز له ډېره سهمه
سهـم ئــې هرګوره په عاشقو زوراور دے (خواجه محمد)

**ـــ دار**:۔(دا+ر) (ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه)رعب لرونکے ـ

جــوره شي رشه لکـــه ښه ناوې سهم داره
ګډ پرې د قسمت او ے سمسار د بېلتانۀ کا (حافظ)

**ـــ گین**:۔ (گـي+ن)(ف تـر ـ صـف ـ مـذ ـ مـو ـ ه)ویـروونکے ـ هیبـت نـاک ـ خوفناک ـ

**ـــ ناک**:۔(نا+ک) (ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه)(۱) رعب داره ـ رعب لروونکے ـ ویروونکے ـ (۲) ویروونکے ـ خوفناک ـ چې ویره تره ترې کېږي ـ

**سهمان** :- (س+ه+ما+ن)(ع ـ د سهم تثنیه)دوه غشي ـ

**سهمانه** :- (س+ه+ما+ن)(وـــ سامانه)

**سهندے** :- (س+ه+ن+د+ے)(اس ـ فا ـ ج ـ ي)د زغم وړ ـ د برداشت قابل۔

سره لمبه به د ښه مخ په ګېډه وخورم
کــه یو ځلي پېښې په نا سهندے شو (حسېن)

**ســهو** :- (س+ه+و)(ع ـ اس ـ مـو ـ ج ـ سـهوے یـا سـهوګاني)خطا ـ غلطـي ـ تېرویستنه ـ غفلت ـ هېره ـ

**ـــ د قلم**:۔ (د+ق+ل+م) (عف تر ـ مو)هغه غلطي چې په لیک کښې په خطا سره واقع شي ـ په لیک کښې تېروستنه ـ (چې اولاد نۀ وي)

**ـــ د کتابت**:۔(د+ک+تا+ب+ت)(عف تـر ـ مو)هغـه غلطي چې د کاتـب نـه پـه کتابت (لیک) کښې وشي (چې ارادتاً نۀ وي) ـ

**ـــ کول**:۔ مص تر)غلطي کول ـ تېر وتل ـ خطا کول ـ خطا کېدل ـ

**ـــ کېدل**:۔ (مص تر)غلطي کول ـ تېر وتل ـ غلطېدل ـ خطا کېدل ـ

**بنده ـــ لري**:۔د انسان نه غلطي کېږي ـ بني ادم له خطا شته ـ

**د ـــ سجده**:۔(س+ج+د)(عـف تـر ـ اس ـ مـو ـ ج ـ دې)هغـه سجده چې پـه مانځهٔ کښې خطا وتلو یا غلطي کولو په موقع کولے شي ـ

**سهول** :- (س+ه+ؤ+ل)(مص)زغملو ته مجبورول۔

که ئې وباسم له خولې جهان به وران که
سهــوې رابـانـدې هومره شور په څۀ؟ (حسېن)

**سهولت** :- (س+هو+ل+ت)(ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)اساني ـ اسانتیا ـ

**سهولے** :- (س+ه+و+لے)(اس مف ـ ج ـ لي)زغملے ـ برداشت کړے ـ

**سـهوونکے** :- (س+ه+وو+ن+کے)(اس ـ فـا ـ ج ـ کـي) زغمـونکے ـ برداشـت کوونکے ـ بردبار ـ

**سهوه** :- (س+ه+و)(وـــ سهوه)

**په ـــ لوئېدل**:۔ غلطي کول ـ تېر وتل ـ خطا کېدل ـ

**ســهه** :- (س+هـه)(اس ـ مـو ـ ج ـ سهې)(۱) زغم ـ برداشت ـ تحمـل ـ صبر (۲) راحت ـ ارام ـ اسودګي ـ

**سهې** :- (س+ه+ئ) (اق)(اس ـ مو)سمندر ـ اور مرغه ـ ققنس ـ

**سهي** :- (س+هي)(صف)(د"صحیح" بدل شکل دے ـ درست ـ

**ـــ کول**:۔(مص تر)په تلاش سره لېدل ـ په نظر کښې راستل ـ لکه میاشت مې سهي کړه ـ

**ـــ**:۔ (س+هي)(ه ـ حرف)(د نفي توري "نه" سره یو ځـاے راځي ـ د بـدل معنٰی ورکوي ـ لکه: سل روپۍ نه سهي پنځوس خو راکړه ـ

**سهېدل** :- (س+هې+د+ل)(مص تر)قرار نېول ـ ارام کول ـ د مـه کېـدل ـ سکون اختیارول ـ سوکه کېدل ـ

**ـــ**:۔ (س+هې+د+ل)(مص)(۱) برداشت کېدل ـ زغملے کېدل ـ (۲) صـــبر کېدل (۳) ایسارېدل ـ ټکاؤ موندل ـ

**سهېدلے** :- (س+هې+د+لے)(اس ـ مف ـ ج ـ لي)برداشت شوے ـ زغمېدلے

**ســهېدونکے** :- (س+هــې+دُو+ن+کے)(اس ـ فـا ـ ج ـ کـي) برداشـت کېـدونکے ـ زغمېدونکے ـ زغم یا برداشت کول ـ

**سهیل** :- (س+هي+ل)(ع ـ اس مع ـ مذ) د یو مشـهور روښانه ستوري نوم دے چې جنوب طرفته دے څکه دغې طرفته هم په پښـتو کښې سهېل راځي ـ (وائي چې ددې ستوري لـه خاصیته بـه پـه یمـن کښې ډېـره اعلی څرمن تیارېدلـه) دا ستورے زمونږ د نور (نمر) نـه ډېـر ډېـر زیـات لـوے دے او روښانه دے ـ د نور په شان خپل نظام لري ـ مونږ نه ډېر زیات لرې دے ـ

مــــدعـــي د تـــورې شپـــې اوراورکے ؤ
د سهېل غونډې مې په ځان باندې څرګنـد کړ (خوشحال)

**ـــ راختل**:۔ (مص تر)(۱) د شمسي کیلنډر څلورمه میاشت د بره کېدل ـ (۲) د سهیل ستوري د راختلو وخت۔

وخت د ښکار دے ،سهېل وخوت
خپل خپل ښکـار بـه پسې غواړي (خوشحال)

**ـــ وهل**:۔ (ق ـ مص تر)د ونو د پاڼو د غورځولو ورځې کېدل ـ

**غاښونه ـــ وهل**:۔(ق ـ مص تر)د یو خاص مرض له کبله غاښونه غورځېدل ـ

**سهیله** :- (س+هُـ+ل)(ق ـ اس ـ مو)(۱) وـــ سهیلې ـ (۲) اســـــاني ـ اسانتیا ـ سهولت ـ (۳) یو قسم تنبو ته هم وائي ـ (ف) ـ

**سهېلې** :-(س+هې+ل+ی)(اس ـ مو)هغه جینۍ چې دبلې جینۍ دوسته ملګرې ، هم عمره او هم نیشته وي ـ

**ســهیم** :- (س+هــي+م)(ع ـ صـف ـ مـذ ـ مـو ـ ه)شـریک وال ـ حصـه دار ـ برخـه لروونکے

**ځان ـــ گڼل**:۔ ځان په کار وغېره کښې حصه دار ګڼل ـ

**سهیمه** :- (س+هي+م)(اس ـ مؤ) برخه ـ حصه ـ

**ـــ ورکول**:۔ برخه ورکول ـ حصه ورکول ـ

**سئ** :- (س+ئ)(پ ـ اس ـ صـف) صـحیح ـ درسـت ـ (دا د "صحیح" وران شـکل دے)

**ـــ**:۔ (سَ+ئ)(پ ـ اس)کوښښ ـ سعي ـ (د "سعي" وران شکل)

**ـــ**:۔ (سَ+ئ)(پ ـ اس)سیاهي ـ (د لیکلو د پاره رنګینه مائع) (داد "سیاهي" وران شکل دے)

**ـــ**:۔ (س+ئ)(حرف)(د هندي د "سهي" بدل شکل دے بلکې شل روپۍ نه سئ لس خو راکړه ـ

**سِي** :- (سِي)(اس ـ مذ)(۱) د اوړو بوره ـ د غنمو پوستکے ـ (۲) د مګس تخم ـ (ق)

**ـــ**:۔ (سِي) (ف ـ اس عدد)دېرش ـ

**ـــ پاره**:۔ (پا+ر)(فپ تر ـ مو ـ ج ـ رے) (۱) دیرش ټکرې ـ (۲) د قرآن شریف دېرشمه حصه ـ

ـــ **کول**:- (۱) دیرش ټکړې کول ـ (۲) کنځل ـ زیږې کول ـ (عموماً مور یا خور وغیره الفاظو سره راځي) ـ

**سے** :- (سے)(ق اس صوت)د غوا غویانو د څملولو اواز یعني اودهٔ شه ـ

ـــ **کېدل**:- (ق ـ مص تر)د غوا غوئي څملاستل یا اودهٔ کېدل ـ

**سیا** :- (س+یا)(اق اس ـ مذ)ګله ـ (د اسونو)

ـــ:- (س+یا)(پ(ظفر) ـ اس ـ مؤ) هغه رسۍ چې د کبانو د جال وارهٔ وارهٔ کورونه پرې یو ځاے کوي ـ

**سِیا** :- (سِ+یا)د سیاه مخفف دے ـ

**سیاځه** :- (س+یا+د)ز)(اس ـ مو ـ ج ـ ځې)(۱) سیاځه ـ هغه پلن کانړے چې مصالحه وغیره پرې اوړهٔ کولے شي ـ درغڼ ـ (۲) هغه کانړے چې چمیاران پرې خپل اوزار تېروي ـ

**سیاڅه** :-(س+یا+(ت)س) (اس ـ مو ـ ج ـ څې)(۱) د ګانړے لنګرے ـ (۲) هغه پلن کانړے چې مصالحه وغیره پرې اوړهٔ کوي ـ درغڼ ـ شیاره ـ

**سیاح** :- (س+ي+یا+ح) یا (سَ+یا+ح)(ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان ـ مو ـ ه) سېل کوونکے سېلانے ـ ملک په ملک او ځاے په ځاے (د سېل د پاره) ګرځېدونکے ـ

**سیاحت** :- (س+یا+ح+ت)(ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)سېلونه ـ سېلونه کونه ـ په مختلفو ملکونو او ښارونو وغیره ګرځېدنه ـ

**سیاحه** :- (س+ي+یا+ح)(اس ـ مو ـ ج ـ حې) مېدان ـ

**سیاحي** :- (س+ي+یا+حي) (اس ـ مو) سیاحت ـ سېل کونه ـ په ملکونو او ښارونو ګرځېدنه ـ

ـــ **کول**:- سېل کونه ـ په ملکونو ګرځېدل ـ

**سیادت** :-(س+یا+د+ت)(ع ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) مشري ـ سرداري ـ پیشوائي ـ (۲) سلطنت ـ حکومت ـ (۳) د سېد انور خاندان نه "بودل" سېدګري ، سېدي

ـــ **ملي**:-(مِ+ل+لي)(عف تر ـ اس ـ مذ) قوي مشري ـ د قام سرداري ـ

**سیار** :- (س+یا+ر)(اس ـ مو)هغه ډوډۍ چې د مختلفو غنمو د اوړو نه جوړه شوې وي ـ

**سیّار** :- (س+ئ+یا+ر)(ع ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه)ګرځېدونکے ـ سېل کوونکے ـ ګرځند ګرځنده ـ

ـــ **ستورے**:-(س+تو+رے)(فپ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ري)هغه ستورے چې حرکت کوي ـ سیاره ـ

**سیارکي** :- (س+یا+ر+کي)

**سیارکے** :-(س+یا+ر+کے)(اس ـ مذ)شمخه چې د شولو په فصل کښې ټوکېږي ـ

**سیارل** :- (س+یا+ر+ل)(مص)حفاظت کول ـ په نظر کښې ساتل ، سارل ـ

**سیارلے** :- (س+یا+ر+لے)(اس مف ـ مذ ـ ج ـ لي)حفاظت کړے شوے ـ د نظر لاندې ساتلے شوے ـ محفوظ ـ بچ کړے شوے ـ سارلے شوے ـ

**سیارنه** :- (س+یا+ر+ن)(حمص)حفاظت ـ په نظر کښې ساتنه ، سارنه ـ

**سیارونکے** :-(س+یا+رو+ن+کے)(اس فا ـ مذ ـ ج ـ کي)حفاظت کوونکے ـ په نظر کښې لرونکے ـ سارونکے ـ

**سیاره** :- (س+یا+ر) (اس ـ مو)ساه لنډے ـ دمّه ـ ضیق النفس ـ مشهوره بیماري ده ـ ارخښ ـ هبه دبه ـ

ـــ **کېدل**:- ساه لنډے کېدل ـ دې مرض لیدل ارخښ کېدل ـ

**سیّاره** :- (س+ي+یا+ر)(صف ـ مو)(۱) ګرځېدونکے ـ حرکت کوونکے (۲) قافله کاروان ـ

ـــ **اشپز خانه**:- (ا+ش+پ+ز+خا+ن)(فپ تر ـ مو ـ ج ـ نے)هغه باورچي خانه چې د یو ځاے نه بل ځاے ته په ګردش کښې وي ـ سفري باورچي خانه ـ

ـــ **شفاخانه**:-(ش+فا+خا+ن)(فپ تر ـ اس ـ مو ـ ج ـ نے)هغه شفاخانه یا هسپتال ـ کومه چې په خاص قسم ګاډو کښې د یو کلي نه بل کلي ته حرکت اوسي ـ سفري شفا خانه ـ

ـــ:- (س+ي+یا+ر)(اس مو ـ ج ـ رے ـ عرج ـ ات)هغه ستورے چې په یو خاص مدار کښې حرکت یا ګردش کوي ـ ګرځنده ستورے (د نمر په نظام کښې پخوا دا خیال ؤ چې اووهٔ سیارې دي ـ یعني سپوږمۍ ، مشتري عطارد ، زحل ، مریخ ، زهره ، او زمکه خو اوس نورې سیارې هم دریافت شوې وي لکه یري نس او پلوټو ـ

ـــ **مصنوعي**:-(م+ص+نو+عي)(فپ تر ـ اس ـ مو ـ ج ـ رې)هغه مصنوعي اله ـ چې بره فضا کښې په حرکت کښې راوستے شي ـ په دې کې د څېړنې او مختلف قسمه حالات معلومولو د پاره الې لګېدلې وي ـ

**سیارے** :- (س+یا+رے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ي)سارے ـ سیال ـ هم سر ـ

**سیاس** :- (س+یا+س)(ع ـ اس ـ مذ)په سیاست پوهان ـ سیاستدان ـ

**سیاست** :- (س+یا+س+ت)(ع ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) انتظام ـ د ملکي معاملاتو انتظام د حکومت او سلطنت پوه د ملک حفاظت وغېره ـ (۲) مجرمانو او ګنګارو له سزا ورکونه ـ (۳) رعب داب ـ دبدبه ـ دهشت ـ وېره ـ

ـــ **پوه**:-(پو+ه)(عپ تر ـ صفت ـ مذ ـ مو ه)په سیاست پوهېدونکے ـ سیاست دان

ـــ **پوهه**:- (پو+هه)(عپ تر ـ اس ـ مو)په سیاست پوهېدنه ـ سیاست داني ـ په سیاسي معملاتو او کارونو پوهېدنه ـ

ـــ **جاني**:- (جا+ني)(عف تر ـ اس ـ مو)د مرګ سزا ـ د پانسۍ یا وژلے کېدلو سزا ـ

ـــ **دان**:-(دا+ن)(عف تر ـ مذ ـ ج ـ ان) هغه سړے چې په سیاست پوهېږي ـ یعني د ملک د انتظام ـ او دملک دچلولو په معاملاتو پوهېدونکے ـ پالیټیشن ـ

ـــ **شرعي**:-(ش+ر+عي)(عف تر ـ اس ـ مو)بدني سزا ـ له په کوړو وهل ـ

ـــ **کول**:-(مص تر)انتظام کول ـ د ملک یا حکومت معاملات (په ښهٔ ډول) سر ته رسول

ـــ **کول (د چا)**:- (۱) د جرم یا ګناه سزا ورکول ـ (۲) د رعب داب ـ دهشت ـ او وبرو لو نه کار اخستل ـ

ـــ **وال**:-(وا+ل)(اس ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه)(۱) په سیاست پوهه ـ سیاستدان ـ (۲) هغه سړے چې سیاست لري ـ

**سیاستي** :- (س+یا+س+تي)(ف تر ـ صف)سیاست ګر ـ سفاک ظالم ـ

**سیاسه** :- (س+یا+سَ)(اس ـ مو)د اسونو په غابښ د اوربشې په شان یو تور داغ ـ چې د اس عمر ترې معلومولے شي ـ

**سیاسي** :- (س+یا+سي)(ع ـ صف)سیاست سره تعلق لرونکے ـ د ملک انتظامي معاملاتو سره تړون لرونکے ـ پولیټکل ـ

ـــ **اقتصاد**:-(ا+ق+ت+صا+د)(عف تر ـ مذ)د ملکي معاملاتو په حقله میانه روي ـ دَ ملک نظام په چلولو کښې منځومانه لار ـ

**سیاسیات** :-(س+یا+س+یا+ت)(ع ـ اس جم)د سیاست جمع ـ د سیاست علم ـ د سیاست سره تړلي معاملات او کارونه ـ

**سیاسون** :- (س+یا+سي+یو+ن)(فر ـ اس ـ ج)سیاست دانان ـ په سیاست پوهه خلق

**سیاف** :- (س+ي+یا+ف)(ع ـ اس ـ فاع ـ مذ) (۱) توره ـ سیف (توره) وهونکے

- جلاد ، قاتل - (۲) د توري د کارمړانے - تورزن -

پــه مغفــر په زغره پټ په منګل ترس
ترس ئې نۀ وي که ورځي تورزن سیاف ته (حافظ)

**سي آف کول** :- (سي+آ+ف+کول)(انګپ تر - مص)رخصتول - وداع کول - په مخه ښه وئیل -

**سیاق** :- (س+یا+ق)(ع - اس - مذ)(۱) روانول - چلول - (۲) علم حساب - شمار - (۳) حساب کتاب ساتل - (۴) طرز - روش - ترکیب - د مضمون ربط طور طریقه - (عموماً په دې اخري معنیٰ کښې ډېر استعمالیږي) -

**ـــــ دعبارت**:- (د+ع+با+ر+ت) د عبارت یا د کلام وړاندینی حصه - یا د وړاندینی حصې سره تړون او ربط -

**ـــــ د کلام**:- (د+ک+لا+م)(و ـــــ سیاق د عبارت)

**سیال** :- (س+یا+ل) (اس - مذ - ج - ان - مو - ه - ج - م - سیالے /سیالئے) برابر - هم سر - نظیر

شریک نۀ لري بې سیال دے
شاه ګــــدا ساتــــي منعم (حافظ)

**ـــــ کېدل**:- هم سر کېدل - برابر کېدل -

د مطلــــوب له طالبانو چې ځان شمېرم
اے رحمانه اول سیال شه ، بیا ئې مومه

**سیّال** :- (س+ي+یا+ل)(ع - صف - مو - ه) بهېدونکے - (لک اوبۀ یا بله کومه مائع څیز)هغه مائع څیز چې په کوم قسم لوښي کښې واچولے شي د همدغې لوښي شکل اختیار کړي -

**سیالټ** :- (س+یا+ل+ټ)(صف - مذ - مو - ه) بالکل - بېخي - ټول - درست -

**سیالټه** :- (س+یا+ل+ټ) د سیالټ تانیث دے - بېخي - بشپړے -

اور چې ولګي په کور څۀ به خلاص شي
ستا هجران زما خوبني یورې سیالټې (سکندر)

**سیالداري** :- (س+یا+ل+دا+ري)(فــپ تــر - اس - مــو)(۱) د سیالۍ پالنــه - د سیالتوب پام لرنه - (۲) برابرے - همسري - سیالي -

**سیالکوټ** :- (س+یا+ل+کو+ټ)(اس - مع) په پنجاب کښې یو مشهور ښار - د لوبو د سامان د صنعت د پاره په دنیا کښې مشهور دے - علامه اقبال په دې ښار کښې پیدا شوے ؤ -

**سیاله** :- (س+یا+ل)(اس - مو) ارام - راحت -

**سیاله** :- (س+یا+ل)

**ـــــ کول**:- ارام کول - راحت کول - دمه کول -

**سیاله** :- (س+یا+ل)(اس - مو - ج لې /لانې)(د سیال تانیث دے)برابره - همسر -

**سیالي** :- (س+یا+لي)(اس - مو) برابرے - همسري -

لکه سیال د سلطان نۀ وي پــه دولت کښې
د افلاس سیالـــي دې څوک نۀ کا له مانه (حافظ)

**ـــــ کول**:- (مص تر)برابرے کول - همسري کول - ځان چاسره سمول -

له یاقــوتو دې هالــه سیالي شبه کا
که د اور په تاو کښې دا نۀ شي بې ابه! (خوشحال)

**ـــــ لرل** (د چاسره) :- چاسره د برابرۍ دعویٰ لرل - برابرے کول - همسري کول -

**سیام** :- (س+یا+م)(اس - مع) په جنوب مشرق ایشیاء کښې یو لوے ملک چې بنکاک ئې دارالحکومت دے اوس ورته تهائي لېنډ وائي -

**سیانست** :- (س+یا+ن+س+ت)(فر - اس - مذ - ج - ان)سائنسدان - د علومو پوهان سائنټسټ -

**سیانړ** :- (س+یا+ن+ړ)(مو - صف)هوښیار - دانا - پوهه - (هندکو :سیانړ)

**ـــــ توب**:- (تو+ب) (هپ تر - اس - مذ - ج - ونه)عقلمندي - هوښیارتیا - چالاکي -

**سیانس** :- (س+یا+ن+س)(فر - اس - مذ - ج - ونه)علم - سائنس -

**سیانسي** :- (س+یا+ن+سي)(فر - اس صفت)د علم متعلق - د سائنس متعلق - سائنسي

**ـــــ پوهان**:- (پو+ها+ن)(فر پ تر - اس - مذ - مو - ه)سائنس کښې ماهر - سائنسدان - سائنټسټ -

**سیاه** :- (س+یا+ه)(ف - صف)تور - (مشهور رنګ) -

**ـــــ باطن**:- (با+ط+ن)(ف تر - صف - مذ - مو - ه)هغه سړے چې باهر که ښۀ ښکاري خو دننه زړۀ ئې تور یعني بدو ته مائل وي - تور زړے - منافق - ریاکار -

**ـــــ بخت**:- (ب+خ+ت) (ف تر - صف - مذ - مو - ه)تور بخت واله - بدبخته - بد نصیبه کوټه بخت واله -

**ـــــ پوښ**:- (پو+خ/ش) (ف تر - صف - مذ - مو - ه)توري جامې اغوستې - د ماتم جامې اغوستې -

**ـــــ چاه**:- (چا+ه)(ف تر - اس - مذ - ج - ونه)ړوند کوهے - هغه کوهے چې پکښې اوبۀ نۀ وي - هغه ړوند کوهے چې پخوا به پکښې مجرمان په قېد کښې ساتلے شول -

**ـــــ چشم**:- (چ+ش+م)(ف تر - صف - مذ - مو - ه)(۱) تورو سترګو واله - تور سترګے (۲) معشوقه - محبوب (۳) ښکاري مارغۀ - باز - چرخ وغېره (۴) بې وفا - بې مروته

**ـــــ دانه**:- (دا+ن)(ف تر - اس - مؤ - ج - نے)(۱) کُنځلې - کونځلې - (۲) دهنیا

**ـــــ رو**:- (رُو)(ف تر - صف)تورمخے - بدنام - رسوا -

**ـــــ روز**:- (رو - ز)(ف تر - صف - مذ - مو - ه) هغه چې ورځ ئې هم توره یا تیارۀ وي بدنصیبي - بدبخے - بد قسمته -

**ـــــ روزګار**:- (رو+ز+ګا+ر)(ف تر - صف - مذ - مو - ه) هغه کس چې ژوند ئې خراب وي - بد نصیبه بدبخته -

**ـــــ سنګ**:- (س+ن+ګ) (اس - مذ - ج - ونه)د کاڼي یو قمس چې تک تور وي

**ـــــ فام**:- (فا+م)(ف تر - صف - م - مو - ه)(۱) تور رنګ واله - تور رنګے - تور نګړے - (۲) حبشي -

**ـــــ کار**:- (کا+ر)(ف تر - صف - مذ - مو - ه)بد کار - تور کارے - ناکاره کارونه کوونکے - ګنهګار -

**ـــــ کاري**:- (کا+ري)(ف تر - اس - مو - ج - ئ) بدکاري - خراب کارونه کونه - ګنهګاري -

**ـــــ کوه**:- (کو+ه)(اس مع) کوه سیاه - تور غر -

**ـــــ ګوش**:- (ګو+ش)(ف تر - اس - مذ - ج - ان) تور غوږے - یو ځناور چې غوږونه ئې تور وي - د ګور کښې په شان یو وړوکے ځناور دے چې دا ړل کوي - وائي چې دا ځناور د زمري نه وړاندې وړاندې زغلي او اوازونه کوي - چې ځنګل نور ځناور خبردار شي -

**ـــــ مست**:- (م+س+ت)(ف تر - صف مذ - مو - ه)بدمست - په سخته نشه کښې -

**ـــــ مستي**:- (م+س+تي) (ف تر - اس - مو) بدمستي - ډېره زیاته نشه -

**ـــــ نامه**:- (نا+م)(ف تر - صف)اصلاً دا نامه سیاه ده - یعني هغه کس چې اعمالنامه ئې توره وي - ګنهګار بدکار - فاسق -

**سیاهه** :- (س+یا+ه)(هــه - اس - مــو)(۱) سیاهي - (۲) کچه روزنامچه - هغه رجسټر چې پکښې حساب کتاب یا احکام درج کولے شي -

**ـــــ کول**:- (روزانه) حساب کتاب لیکل یا داشتونه لیکل -

**ـــــ لیکل**:- (و ـــــ سیاهه کول)

**ـــــ نویس**:- (هف تر - اس - مذ - ج - ان)هغه کس چې په سیاهه (روزنامچه یا رجسټر) کښې د ورځې ورځې یاداشتونه یا حساب کتاب لیکي -

**سیاهي** :- (س+ یا+ه ي )(ف ـ صف ـ مؤ )(۱) تور والې ـ (۲) د لیک د پاره سیاله ده ـ

**ـــــ چټ**:- (چ+ټ)(ف تر ـ اس ـ مذ)هغه خاص کاغذ ـ چې نم راکاږي ـ خشکه ـ کاغذ جاذب ـ سیاهي چوس ـ

**سي آئي ډي** :- (سي+آ+ئي+ډي)(انګ ـ اس ـ مذ)د انګریزي د جملې "سول ـ انوستي ګېشن ډیپارټمنټ" حرفي مخفف دے ـ یعني هغه محکمه چې په پټه د ځینو کارونو او جرمونو په حلقه تفتیش کوي ـ

**سیب** :- (س+ي+ب)(ق ـ اس ـ مذ ج ـ ونه)سر پناه ـ د ناستې ځاے د دېوال سورے

**سَیب** :- (سے+ب)(اس ـ مذ ـ مو ـ ه)د صاحب بدل شکل دے ـ (ـــــصاحب)

**ـــــ زادګي**:ـ(زا+د+ګ+ي)د صاحب زادګۍ بدل شکل دے ـ (وـــــصابزدګۍ)

**ـــــ زاده**:ـ(زا+د)(فپ تر ـ اس ـ ج ـ ګان)د صاحبزاده بدل شکل دے ـ (صاحبزاده)

**سیب** :- (سي+ب)(ف ـ اس ـ مذ) سبو ـ منه ـ

**ـــــ ذقن**:ـ(اص) منې په شان زنه لرونکې ـ محبوبه ـ

چـــې یوسف غونډې هزار پکښې پراته دي
بندیوان د هغـــه سېب ذقن پـــه چـــاه یم (رحمان)

**ـــــ زنخدان**:ـ اِص)(وــــ سیب ذقن ـ

دا څهٔ سېب زنخدان دے
چې هم سیم دے هم سمر (رحمان)

**سیبات** :- (سے+با+ت)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)درشل ـ دهلیز ـ سبات ـ

**سیبزئ** :- (سي+ب+ز+ئ)(اس مع)د شډو زو یوه ځانګه ده چې (علي زئ ، سنزرخېل) کاکړ دي ـ (غالباً چې د صاحب زئ بدل شکل دے) ـ

**سیبل** :- (سے+ب+ل)(انګ ـ اس ـ مذ) د یو ځناور نوم دے ـ چې په شمالي ایشیا او په شمالي یورپ کښې واورینو سیمو کښې پیدا کېږي ـ دي ځرمن نه د ژمي د استعمال څیزونه لکه داستانې وغېره جوړېږي ـ سمور ـ د وېښتو نه ئې د مصوري د پاره اعلی قسمه برشونه جوړولے شي ـ

**سِبل** :- (سي+ب+ل)(ق ـ مص)(۱) هضم کول ـ (۲) برداشت کول ـ زغمل ـ سهل

**سِبلے** :- (سي+ب+لے)(اس ـ مف مذ ـ ج ـ لي)(۱) هضم کړے ـ (۲) برداشت کړے ـ زغملے ـ سهلے ـ

**سیبوونکے** :- (سي+ب+وو+ن+کے)(اس ـ نا ـ مذ ـج ـ کي) برداشت کوونکے ـ زغموونکے ـ سهونکے ـ

**سیبه** :- (س ي+بَ)(ق ـ اس ـ مؤ) پناه ـ

**سیبیریا** :- (س+ي+بے+ري+یا)(اس مع) د ایشیا ، براعظم قطب طرفته یو لوې ملک ـ چې د روس په حکومت کښې دے سائبیریا ـ

**سیپ** :- (س+ي+پ)(اس مذ)نم ـ نمي ـ لوندوالے ـ

**سِیپ** :- (سي+پ)(ه ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)صدف ـ د سمندر د یو قسم چینجو کور ـ

**سیپاره** :- (سي+پا+ر) (اس ـ مو ـ ج ـ ري)د قرآن شریف په دېرشو برخو کښې یوه برخهٔ ـ سیپاره ـ

**سیپاري** :- (سي/س+پا+ري) (اس ـ مو)د یوې لوړې ونې نوم دے ـ ګرمو علاقو کښې پیدا کېږي ـ (هندي ـ تمبول) سپراري ـ سیپاري (مخزن) ـ

واړه ستا پـه ننداره ګردن اوچت کړ
سیپاري که صنوبر دے که شمشاد (رحمان)

**سیپټک** :- (س+پ+ټ+ک)(انګ ـ اص) هغـه زخـم وغېـره چـې د جراثیمـو وغېره په وجه خرابېدونکے وي ـ سخاو شوے بوي ناک ـ (عموماً د نفي په طور انټسي سپټک استعمالېږي ـ یعني هغه وائي چې زخم وغېره د خرابېدو نه بچ کوي ـ

**ـــــ کېدل**:ـ (د زخم وغېره) خرابېدل ـ نو کول ـ جراثیم پرې لګېدل ـ بوي ناک کېدل ـ سخا کېدل ـ

**سِپئ** :- (س+پ+ئ)(اس ـ مو)صدف ـ پخوا به دغه صدف د کاشغې په طور استعمالېدهٔ ـ ځکه ځینې خلق اوس هم وړې کاشغې ته سیپۍ وائي

**سیت** :- (س ي+ت)(وـــــ سیټ)

**سیتا** :- (سي+تا)(اس مع) د راجا رام چنه جي ښځه وه ـ هر کله چې رام چندر چې پلار راجه د سرت د خپلې یوې ښځې سره د وعدې په طور پوره کولو د پاره رام چنـدر جـې لـه د څوارلسـو کـالو د پـاره پـه ځنګلونـو کښـې د اوسېدو حکم ورکړو نو سیتا هم ورسره دغه عمر په ځنګلونو کښې تېر کړو ـ

**سېټ** :- (سې+ټ)(ه ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان)(۱) دولتمند ـ د ډېر مال خاوند ـ شته من ـ (۲) ساهو کار ـ په سود روپۍ ورکوونکے شیو کار ـ (۳) مسلمانانو به هر هندو دوکاندار د "سېټ" په لفظ مخاطب کولو ـ که هغه به دولت مند هم نهٔ ؤ

**سیټ** :- (س+ټ)(انګ ـ مذ ـ ج ـ ونه) د مختلفو څیزونو مجموعه چې یو بل سره یو شان وي یا د یو بل د پاره ضروري (جوړه) وي ـ

**ـــــ ټي**:ـ(ټي)(وــــد چا یو سېټ)

**ـــــ د چا یو**:ـ(د ، چا+یو)(انګ پ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د هغو لوښو مجموعه چې د چا یو څښـکلو د پاره پکارېږي ـ په دې کښې چائینک ـ شیردان ـ چیني دان ـ پیالۍ پرچونه او پلېټونه (رکېبۍ) شامل دي ـ

**ـــــ ډنر**:ـ (ډ+ن+ن+ر) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د خوراک د لوښو مجموعه چې پکښې وړې لوئې رکیبۍ ډونګې ـ غورۍ وغېره شاملې وي ـ

**ـــــ د رادیو**:ـ(د ، را+دي+یو)(انګ پ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د ریډیو سېټ ـ د ریډیو باجه چې عموماً ورته "ریډیو" وائي ـ

**ـــــ ریډیو**:ـ (رے+ډ+یو)(وـــــد رادیو سېټ)

**ـــــ د سکویرونو**:ـ(د+س+ک+وے+رو+نو)د جیومېټرۍ د کار د پاره د لرګي یا پلاسټکو یا د وسپنې هغه درې ګټېزې الې چې یوه پکښې د ۹۰ ـ ۴۵ ـ ۴۵ درجو زاویې لري ـ او بله د ۹۰ ـ ۳۰ او ۶۰ درجو ـ

**ـــــ سوفه**:ـ (سو+ف) د ناستې د پـاره خـاص قسـم نـرم څیـز چـې پـه کښـې سپرنګونه لګېدلي وي ـ عموماً درې داني وي ـ دوه پکښې دیو یو کس د ناستې د پاره وي او یوه لویه وي چې درې تنه پرې کښېناستے شي ـ کوچ ـ

**ـــــ د غوښونو**:ـ(د ، غا+خو/شو+نو)(اس ـ مذ) د مصنوعي غاښونو جوړه ـ د لاندې او باندې دواړو جامو مصنوعي غاښونه ـ

**ـــــ د کالو**:ـ (د ، کا+لو) (انګ پ تر ـ اس ـ ج ـ ونه)د هغو کالو مجموعه چې دیو بل د پاره لازمي وي ـ جوړې ـ جوړه ـ لکه :د جومکو سېټ ـ

**ـــــ د لوښو**:ـ (د ، لو+خو/شو) (انګ پ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د داسې لوښو مجموعه چې هغه د یو بل د پاره ضروري وي ـ عموماً ترې "ډنر سېټ" مراد وي ـ (وـــــډنر سېټ)

**سِیټ** :- (س ي+ټ)(انګ ـ فعل)برابرېدل ـ درست لګېدل یا لګولو ـ

**ـــــ کښېښودل**:ـ (په پښتو کښې "کول" یا کېدل هم ورسره راځي) ـ

**ـــــ کول**:ـ څهٔ څیز په درست ځاے لګول یا کښېښودل ـ دا فرنیچر په دې کوټه کښې سېټ کړه ـ

**ـــــ کېدل**:ـ څـهٔ څیـز پـه یـو ځـاے درسـت او موزونیـت سـره لګېـدل یـا کښېښودلے کېدل ـ لکه دا تصویر دلته نهٔ سېټ کېږي ـ

**سِیټ** :- (سي+ټ)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) د ناستې ځاے ـ په کرسۍ بېنچ وغېره کښې هغه ځاے چې سړے پرې کښېني ـ (۲) په بس ـ جهاز

یا رېل ګاډي کښې سنیما وغېره کښې دیو کس د ناستي ځاے.

**ـــ ریزروکول:**- په جهاز، ګاډي یا سنیما کښې د ناستي د پاره "سیټ" محفوظ کول د وړاندې نه د ناستي ځاے مخصوص کول

**ـــ نیول:** په بس وغېره کښې د چا د پاره په سیټ باندې عارضي طور سره کېښناستل یا په دغه سیټ باندې ټوپۍ ځادر وغېره څۀ نښه کښېښودل - چې بل څوک پرې کښې نۀ ني.

**سیټیسفکشــن** :- (ســې+ټ+س+فې+ک+ش+ن)(انګ- اســم- مذ)تسـلّي- اطمېنان

**سیټل** :- (س+ټ+ل) (انګ- ص)مستقل طور سره استوګن.

**ـــ کېدل:**-مستقل طور سره استوګن کېدل- مستقله استوګنه نیول- اباد‌ېدل.

**سیټه** :- (سې+ټ)(اس- مو- ج- سیټې)(۱) د سیټ مؤنث- (و ـــ سیټ)(۲) د سیټ اضافي یا منادي حالت لکه یه سېټه!-

**سي ټي** :-(سي+ټي)(ه- اس- مو)(۱) شپېلۍ چې د خولې نه په یو خاص طریقه ایستلې شي- (۲) یو وړوکې شان اله چې د خولې په پوکي اواز پیدا کوي- پشپیلۍ-

**ـــ ورکول:**- د سیټي (شپیلي) په ذریعه اشاره ورکول- لکه د ټېشن بابو سیټي ورکړه او بیا ګاډے روان شو-

**ـــ وهل:**- (۱) د مصنوعي سیټي نه په زوره اواز ویستل- لکه ګاډي سیټي ووهله- (۲) شپیلۍ وهل-

**ـــ:**- (سې+ټي)(ه- صف- ج- ان)د هندي د "سیټهي" بدل شکل دے- سیټ- مالداره سړے- شته منډ- (سیټ به پخوا عموماً د هندو شته من د پاره استعمالېدۀ او د سیټي لفاظ د مسلمان شته من د پاره)

**سیج** :- (سې+ج)(ه- مذ- ج- ونه)پالنګ- بچونه- د ګلونو څادر- چې په بچونه غوړولے شي- (عموماً د ګلونو سیج په مرکب کښې استعمالېږي)-

**ـــ د ګلونو:**-(د، ګُ+لُو+نو)(ه- اس- مذ- ج- ونه) هغه بستره چې ګلونه پرې غوړېدلي وي- مجازاً- اسان او د ارام کار- لکه د قام خدمت څۀ د ګلونو سیج نۀ دے-

**سیجي** :- (سې+جي) (ق اس- صف)د صحیح نسب- د خالص نسل-

**سیجے** :- (سې+جے(مص) سیزول- سوځول- بلول-

**سیځلے** :- (سې+(د)ز+لے)(اس مف- مذ- ج- لي)سېزلے- د سوځولے-

**ســیځوونکے** :- (ســې+(د)ز+وو+ن+کے)(اس فـا- مـذ- ج- کـي) ســېزونکے- سوځوونکے

**سیځنه** :- (سې+(د)ز+ن)(حمص) سوځونه- سېزنه- بلونه-

**سیچټ** :- (سې+چ+ټ)(اس- مذ)خشکه- کاغذ جاذب- د سیاهي چټ مخفف شکل دے)

**سیچریاسیټرډے** :- (سې+چ/ټ+ر+ډے)(انګ اس- مذ)د خالي ورځ- د هفتې ورځ

**سیحون** :- (سې+حو+ن)(ف- اس معرفه- مذ)د تار تار دیو مشهور دریاب نوم چې په جهیل ارال کښې پرېوځي-

پوست د خرېیشوئي په سیحون په جېحون وینځي
پـــاک بـــه پـــه مذهب د امامانو د دین نـــۀ شي (حافظ)

**ســیخ** :- (ســې+خ)(ف- اس- مـذ- ج- ونـه)د وســپنې ډنـډه- د وســپنې نـرۍ (غونده) اوږده ټوټه-

**ـــ پا:**-(ف تر- صف)(۱) د ځناور په ورستنو دوه و پښو ودرېدنه- (۲) په غصه کېدل- په قهر کېدل تاؤ اخیستل-

**ـــ کباب:**- (ک+با+ب) (فې تر- اس- مذ- ج- ونه)په سیخ باندې وراتۀ کړي کباب د سیخکو کباب-

**ـــ لګول:**- په سیخ کښې پېرلي شوې تیکې ورتولو د پاره په اور کښېښودل-

**په ـــ لګول:**- د ورتولو د پاره د غوښې تیکې په سیخ کښې پېرل-

**ـــ:**- (سي+خ)(پ- صف)نېغ- سم-

**ـــ کول:** نېغول- سمول- درستول- مستقیم کول-

**ـــ کېدل:** نېغ کېدل- سمېدل- مستقیم کېدل-

**سیخچه** :- (س+خ+چ)(اس- مو- ج- چې)(۱) وړوکے شان سیخ (۲) سولے، څولے، شځرلے- د ترکاڼانو یو اوزار- چې سورے پرې کوي- (۳) د وړوکي سیخ په شان اوزار چې غله پرې کنډر کوي-

**سیخک** :- (سي+خ+ک)(اس- مذ- ج- ونه)وړوکے سیخ- (د سیخ تصغیر)-

**سیخکه** :- (س+خ+ک) (ق- اس- مو- ج- کې) د اوسپنې یو قسم نغرې-

**سیخکے** :- (سي+خ+کے)(اس- مذ- ج- ي)(۱) وړوکے سیخ- (د سیخ تصغیر) سیخچه- هغه سیخ چې کباب یا تیکې پرې ورتولے شي- (۲)د سـیخ په شان یو وړوکے شان مېخ- مېخکو سره سیخکي خو وي- (متل)

**سیخل** :- (سي+خ+ل)(مص)(۱) څۀ څیز په لوښي وغېره کښې په زور منډل- ډکول- (۲) په سیخ یا د سیخ په شان څیز- چوکه کول- یا اورې پورې یستل

**سیخلے** :- (سي+خ+لے)(اس- مف- مذ- ج- لي)څۀ څیز چې په زور زور ډک کړے شوے وي- ډک کړے-

**سخندے** :- (سي+خ+ن+دے)(اس- صف- مو- ه)چوخندونکے-

**سیخنه** :- (سي+خ+ن)(حمص)(۱) د سیخولو عمل- څۀ څیز په لوښي وغېره کښې په زور زور منډل په زور او دباؤ سره ډکونه- (۲) په سیخ سره زخمي کونه- یا سورے کؤنه-

**سیخول** :- (سي+خ+ؤ+ل)(مص)(۱) د سیخ په شان نېغول- (۲) په زور زوره دباؤ سره ډکول- (۳) سیخ سره چوکه کول-

**سیخېدل** :- (سي+خې+د+ل)(مص) نېغېدل- سمېدل-

**سیخېدنه** :- (سي+خې+د+ن)(حمص)نېغېدنه- سم کېدنه- مستقیم کېدنه-

**ســیخېدونکے** :- (ســي+خې+دو+ن+کے)(اس فـا- ج- کـي) نېغېدونکے- نېغ کېدونکے- سم کېدونکے-

**سّید** :- (س+ئ+ئ+د)(ع- اس- مذ- ج- سیدان- مو- سیّده)(۱) سَید- سردار- مشر- سالار- پېشوا- (۲) د حضرت علي کرم الله وجهه او د حضرت بي بي فاطمته الزهرا رضي الله عنها اولاد- (پښتو کښې عموماً "سیېد" تلفظ کولے شي- په شعرونو یا په مرکباتو کښې وئیلے شي (مثالونه ئې وړاندې راځي)

**ـــ الانام:**- دبني ادمو سردار- د حضور پاک ﷺ لقب-

**ـــ الانبیاء:**-(دُ+ل+ا+م+ب+یا)(ع تر- مذ)د انبیاؤ یعني د نبیانو سردار مراد ترې محمد مصطفٰی ﷺ دے-

**ـــ بخاري:**-(بُ+خا+ري)(ع ف تر- اس- مذ)هغه سېد چې د بخاري خاندان وي د اوچتې کورنۍ سېد-

**ـــ البشر:**- (دُ+ل+ب+ش+ر)د بنـي ادمـانو سـردار- مـراد تـرې محمـد مصطفٰی ﷺ دے-

**ـــ زاده:** (زا+د)(عف تر- اس- مذ- ج- زاد، د+ګان)(د سېد الاد- سېد)

**ـــ الشهداء:**-(۱) لغوي معنٰی ئې د شهیدانو سردار دے- د امیر حمزه ؓ لقب ؤ- چې د اُحد په غزا کښې شهید شوے ؤ- د حضور پاک ﷺ ترۀ ؤ- (۲) دا لقب د حضرت امام حسېن ؓ د پاره هم استعمالېږي-

**ـــ المرسلین:**-(دُ+ل+مُ+ر+س+لي+ن) (ع تر- اس- مذ) د مرسلانو یعني د پېغمبرانو سردار مراد ترې حضرت محمد ﷺ دے-

ـــــ **النساء** :- (د+ن+نِ+سا)(ع تر ـ اس ـ مو)د ښځو سرداره ـ مراد ترې حضرت فاطمه بي بي رضي الله عنها ده ـ

**سېد** :- (سې+د/س َ+ئي+ئ+د) (اس مع)اصلاً د سېدانو مختلفې کورنۍ دي ـ چې د کوئټې ـ پشين ـ ژوب قلات ښې وغيره علاقو کښې اوسېدونکو پښتنو سر توپرېږيو يو ځاے اوسېدلې او په پښتو کښې خپلولۍ او رشتې کړي دي ـ ځکه دوي هم په يو حقله پښتانۀ گڼلے شي ـ د دوي گڼې کورنۍ دي ـ لکه: احمدنيه ـ عرب بهلول زئ ـ بيدر ـ بخاري ـ فتح علي زئ ـ غازي ـ گيلاني ـ حبيب زے ـ حسيني ـ کرال ـ کربله ـ خرسين ـ معشوق ـ رضائي ـ تارن ـ کوم سيدان چې د چاغي په سيمه کښې اوسي هغوي د بلوچو سره د گډون له کبله د بلو چو رنگ لري ـ

**سېد** :- (سې+د/س َ+ئ+ئ+د)(اس ـ مع)غالباً چې د سېدانو کورنۍ ده چې د بارک زو پښتنو سر گډه ده ـ بارک زي تر غره کاکړ دي ـ

**سـېداحمـدخېـل** :- (س َ+ې+د+ا+ح+م+د+خېـل)(اس ـ مـع)د علـي شيـر زو يـوه څانگه ده ـ چې (لښکرزئ) اورکزئ دي ـ

**سېدان** :- (سې+دا+ن)(اس ـ مع) د رکهنوالو يوه څانگه ده ـ لوڼي دي

**سېدان زئ** :-(سې+دا+ن+ز+ئ)(اس ـ مع)د ذاکر زو يوه څانگه ده ـ چې رکهنوال لوانيدي ـ

**سېد ترمـزي** :- (س+ئ+ي+د+ت+ر+م+زي)(اس ـ مع)د پير بابا د ځوئې سېد جلال بابا اولاد څوک چې ساتيانو سره هزارې ته اوړېدلي وو ـ او هلته مېشته شوي وو ـ دا خلق دالاټي په سيمه آباد دي ـ او الاټي وال بللے شي

**سېد خان نمسي** :- (س+ې+د/سے+د+خا+ن+ن+م+سي)(اس ـ مع)د علي کرانو يو ښاخ دے ـ چې (ماموزئ ، لښکرزئ) اورکزي دي ـ اولـل خان کوربيا د سيد خان نمسو يوه څانگه ده ـ

**سېد خېل** :- (سې+د/س+ئ+د+خېل)(اس ـ مع)د عمر زو يو ښاخ دے ـ چې ـ (شين خېل ، احمد زئ ، درويش خېل) وزير دي ـ د سيد خېلو څانگې دا دي ـ تورخېل ، او ادر خېل ـ

ـــــ **(ددغه)** :-(اس ـ مع)د ناصرو يوه څانگه ده ـ غلزي دي ـ

ـــــ **(ددغه)** :-(اس ـ مع)د ايسوټ خېلو يوه څانگه ده ـ چې لوهاڼي پاونده ميا خېل دي ـ (د ډېرو (اسمٰعيل خان) کډه په سر دي ـ

**سېد زئ** :- (سې+د/س+ئ+د+ز+ئ)(اس مع)د سارنگ زو يوه څانگه ده چې (هاران خېل ، ساتيا) کاکړ دي ـ

ـــــ **(ددغه)** :-(اس مع)د بارک زو ياه همسايه قبيله ده بارک زي ، تر غرۀ کاکړ دي ـ

ـــــ **(ددغه)** :-(اس مع) د لوح زئ يوه څانگه ده ـ چې ايسوټ دي ـ

ـــــ **(ددغه)** :-(اس مع)د مهتر زو يوه څانگه ده ـ چې (هارون خېل ، سناتيد) کاکړ دي ـ

**سېد علي خېل** :- (س َ+ې+د+ع+لي+خېل)(اس ـ مع )د حسن خېلو يوه څانگه ده ـ چې ( مداخېل ، عيسٰی زي) يوسفزي دي ـ ( استوگنه : دمهابڼ علاقه) ـ

**سېدگي** :-(سې+د/س َ+ئ+د+گي)(اس ـ مع)د وزيرستان د وزيرو يوه قبيله ده ـ

ـــــ **(ددغه)** :-(اس ـ مع)د خانخېلو يوه څانگه ده ـ چې (تختي خېل ، بقاخېل ، ولي خېل ، اتمان زئ ، درويش خېل) وزير دي ـ

**سېدومير** :- (اس موفه)د اورنگ زيب عالمگير يو سردار چې په کابل کښې حاکم ؤ

سېد مير او مير بابا دواړه حاضر دي
کـه د دې خبـرې غـوارې استدلال (خوشحال)

**سېدنا** :-(س+ې++د+نا) کلمه مخاطب ـ (۱) زمونږ (زموږ) سردار ! زمونږ (زموږ) مشر ـ (۲) د چا عزتمند ـ بزرگ سړي د نوم نه وړاندې د عزت او احترام د پاره استعمالېږي ـ

**سېدو** :- (سې+دو)(اس ـ مع)په سوات کښې لوے ښار ـ چې په رياستي دور کښې د رياست دارلحکومت ؤ ـ دلته دا اخون صېب د سوات زيارت دے ـ

**سېده** :- (س َې+ي+د)(ع ـ اس ـ مو ـ ج ـ د) (۱) د سېد لور ـ هغه جينۍ ښځه يا جينۍ چې مور او پلار دواړه يا صرف پلار ئې سېد وي ـ (۲) سرداره ـ مشره ـ (په پښتو کښې "دې" مشدد سره نۀ وائي ـ بلکې يائې مجهول سره سيده (سے+د+) وائي)

**سـِيده** :- (س ي+د َ)(ه ـ صـف)نېغ ـ سـم ـ راسـت ـ (د هنـدي اصـل لفـظ "سيدها"دے) ـ

ـــــ **تلل** :-(مص)برابر په مخه تلل ـ په سمه لاړ يون کول ـ

هدايت وکړه وماته يره خدايه!
چې وتاته ځم په سمه لاړ سيده (خواجه محمد بنگش)

ـــــ **کول** :-(۱) نېغه ول ـ سمه ؤل ـ مستقيم کول ـ درستول ـ (۲) سزا ورکول ـ

ـــــ **کېدل** :- (مص تر)سمېدل ـ نېغېدل ـ سم ورتلل ـ نېغ ورتلل ـ

چې په زړۀ ئې ستا د غم غسے سيده شي
قرار صبر بـــه ئې لـه دلـه د مـيده شي (خوشحال)

**سيدي** :- (س َ+ئ+ي+دي) (ع ـ کلمه تخاطب)(۱) اے زما سرداره ـ زما مشره ـ (۲) د چا مشر بزرگ سړي نوم نه وړاندې د عزت او احترام په طور وئيلے او ليکلے شي ـ

ـــــ **لبيک يا** :-(ل+ب+يے+ک+يا)(ع جمله)حاضر يم اے زما سرداره ـ د چا د غږ يا بللو د اواز په جواب وئيلے شي ـ

**سيدي خېل** :- (س ي+دي+س َ+ي+دي+خېل)(اس ـ مع)د توران خېلو يوه څانگه ده ـ چې (پالاخېل ، تتّه) بيټني دي ـ

**سير** :- (س ي+ر)(ه ـ اس ـ مذ)سېل ـ هواخوري ـ تفريح (د پاره گرځېدنه)

ـــــ **سپاټه** :- (س+پا+ټ) (ه تر ـ مو)(۱) "سپاټه" لفظ ورسره د تاکيد د پاره استعمالېږي ـ سېل ـ هوا خوري ـ گرځېدنه او تماشه کونه ـ (۲) بې مقصده گرځېدنه ـ

ـــــ **کول** :- سېل کول ـ ننداره کول د ننداري د پاره گرځېدل ـ

مرد په پټو سترگو سېر د هغه باغ کا
چې ترتيب پوري ئې نۀ رسي ارم هم (سعيد)

ـــــ **کېدل** :- د څۀ ځاے د کتو د پاره گرځېدل ـ سېل کېدل ـ

ـــــ **گاه** :-(گا(ه)(ف تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د سېل ځاے ـ هغه ځاے چېرته چې هوا خوري کولے شي ـ د هواخورۍ د پاره د گرځېدو ځاے

ـــــ **له ځانه** :-له ځانه ماړه ـ له ژونده تېر ـ

چــې د دواړو سترگو شېر درڅخه شته
پرې ئې خوره ، له ځانه سېر درڅخه شته (خوشحال)

**سېر** :- (سې+ر)(ه ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د يو وزن نوم ـ چې تر اوسه پورې زمونږ په ملک کښې هم استعمالېدۀ ـ د پېښـور (پښتنو) سېر د يو سل او پنځو تولو برابر دے ـ

ـــــ **قدري** :-(ق+د+ر)(پ تر)د يو سېر همره ـ سېر يا ددې نه يو پوټے شان کم يا زيات ـ

ـــــ **پوخ** :-(پو+خ)(پ تر ـ مذ ـ ج ـ پاخۀ سېرونه)پېښور يا خېبر پښتونخواه کښې استعمالېدونکے سېر ـ چې يو سل او پنځو تولو برابر ؤ ـ

**په ـــــ کښې پوڼۍ** :-(پو+ن+ړ+ی)په سېر مالوچو کښې رېښلې شوې يوه پوڼۍ ـ ډېر لږ مقدار لکه لاخو مونږ په سېر کښې پوڼۍ هم نۀ ده رېښلې ـ

**د ـــــ نه څو پخېږي** :-د سېر اوړو نه څو ډوډۍ پخېږي کنايةً صحيح حال

معلومول۔لکه: چې په خپل سر دې راشي نو هله به خبر شې چې د سبر نه ثو پخېږي۔

**ــــ کچه**:۔ (ک+چ)(پ تر۔اس۔ مذ۔ج۔کچه سبرونه)هغه سبر چې په پنجاب او هند کښې استعمالېدهٔ۔دا د اتیاؤ تولو سره برابرؤ۔

**سَیر** :۔ (سے+ر)(ف۔صف)موړ۔ډک۔بې پروا۔

**ــــ چشم**:۔ (چ+ش+م)(ف تر۔صف مذ۔مو۔ه) موړسترګے۔مړه خوا۔چې د څهٔ څیز حرص نهٔ لري۔قانع۔

**ــــ چشمي**:۔(چ+ش+مي)(ف تر۔اس۔مو۔ج۔ي)د سترګو مړېدنه۔موړ سترګتوب۔قناعت۔حرص یا لالچ نهٔ لري۔

**ــــ حاصل**:۔ (حا+ص+ل)(ف تر۔صف۔مذ۔مو۔ه)د څهٔ څیز نه چې ډېر څهٔ حاصل شي۔د هغهٔ لیک یا بحث چې ډېره فائده یا معلومات ترې حاصل شي۔کافي شافي۔

**ــــ کول**:۔ مړه ؤل۔

نفس لکه د یو سېر کړې غافل څلې مولاهېر کړے
ځان بــه پــه اندهېر کــړې رڼا نه لېږې عقبا له (حافظ)

**سِیَرَ** :۔ (سي+ي+رَ)(ع۔ مذ۔ج) د سیرته جمع ده۔(وــــ سیرت) عادتونه۔

یو د بل لــه حاله پند اخلي خوشحاله
د سړي چې دا سیر نه وي،حصم هېڅ!

**سیراب** :۔(سے+را+ب)(ف۔صف مذ۔مو۔ه)په اوبو موړ شوے۔ښهٔ اوبهٔ شوے۔

**سیرابول** :۔ (سي+را+ب+ؤ+ل)(مص)اوبهٔ ورکول۔اوبهٔ خور کول۔په اوبو مړول۔

**سیرابؤنه** :۔(سي+را+ب+ؤ+)(حمص)سیرابونه۔اوبهٔ ورکونه۔اوبهٔ کونه۔اوبهٔ سمونه۔

**سیرابوونکے** :۔ (سي+را+ب+وو+ن+کے)(اس۔فا۔ج۔کي)اوبهٔ ورکوونکے۔اوبهٔ کوونکے۔اوبهٔ خورکوونکے۔په اوبو مړوونکے۔اوبهٔ ورسوونکے۔

**سیرابي** :۔ (سي+را+بي)(ف۔اس۔مو) اوبهٔ کېدنه۔اوبهٔ خور کېدنه۔اوبهٔ ورکړې کېدنه۔په اوبو مړېدنه۔

**سیرابېدل** :۔ (سي+بې+د+ل)(مص)اوبهٔ کېدل۔اوبهٔ ورکړے کېدل۔اوبهٔ خور کېدل۔په اوبو مړېدل۔

**سیرابېدنګ** :۔ (سي+را+بې+د+ن+ګ)(وــــ سیرابېدنه)

**سیرابېدنه** :۔ (سي+را+بې+د+ن)(حمص)سیراب کېدنه۔اوبهٔ کېدنه۔په اوبو مړېدنه۔اوبهٔ خور کېدنه۔

**سیرابېدونکے** :۔ (سي+را+بې+دو+ن+کے)(اس فا۔ج۔کي)سیراب کېدونکے۔اوبهٔ کېدونکے۔په اوبو مړېدونکے۔

**سیرالیون** :۔ (سي+را+لي+یو+ن)(اس۔مع)د یو ملک نوم دے۔

**سیرالیوني** :۔ (سي+را+لي+او+ني)(اس۔مع)(۱) د سیرالیون د ملک اوسېدونکے (۲) د سیرالیون په ملک جوړ شوے۔

**سیرپ** :۔ (سي+ر+پ)شربت۔خصوصاً هغه شربت چې پکښې څهٔ دوائي وګډه شوې وي۔سیروپ۔(دا لفظ د عربي د "شرب" نه یورپي ژبو ته تلے دے)۔

**سیرت** :۔(سي+ر+ت)(ع۔اس۔ مذ۔ج۔ونه)(۱) خوئي خصلت۔عادت۔اخلاق طور طریقه۔(۲) د ژوند حالات۔سوانح عمري۔

**ــــ النبي**:۔ (تُ+ن+ن+بي)(عف تر۔اس۔ مذ) د حضور پاک ﷺ سیرت۔ د حضور ﷺ د ژوند حال۔

**سیرتهٔ** :۔ (سي+ر+ت+ن)(ع۔مف)د سیرت په لحاظ سره۔د خوئي خصلت عادتونه او د طور طریقو د مخې۔

**سیرځے** :۔(سي+ر(د)زے)(ق۔اس۔ مذ۔ج۔ځي)پیشرو۔مقدم۔وړاندې تلونکے

**سیر دریا** :۔ (سي+ر+د+ر+یا)(اس۔مع)سیر دریا۔د یو مشهور سیند نوم

**سیرکه** :۔ (سي+ر+ک)(اس۔مو۔ج۔کې)یو خوش اوازه مرغۍ چې په پنجره کښې ساتلے شي۔سایره۔سیره۔

**سیرکۍ** :۔ (سي+ر+ک+ۍ)(ق۔اس۔مو)د بلوط (څېړۍ) د ونو یو قسم چې پاڼې ئې وړې وړې وي۔

**سیرګوخېل** :۔ (سے+ر+ګو+خېل)(اس۔مع)د پنج پایو یوه څانګه چې (نسو زئ، الیاس زئ) بنیر وال۔

**سیرل** :۔ (سي+ر+ل) (وــــ څیرل)

**سېرلۍ** :۔ (سې+ر+ل+ۍ)(ق۔اس۔مو)

**سیرلے** :۔ (سي+ر+لے)(ق۔اس۔مو)پنیر مایه۔

**سېرلے** :۔ (سې+ر+لے)(اس۔ مذ۔ج۔لي)چیلنګړے۔د بزې بچے۔بزګوړے۔

**سِیرل** :۔ (سي+ر+لے)(وــــ څیرلے)

**سیرم** :۔ (سي+ر+م)(اس۔ مذ)(۱) د تنداپې ژۍ (جې) چې د ګډو بزو د کُلمو نه جوړېږي۔یا د څرمنې نه جوړ شوے تار چې پېړۍ وغېره پېزار په ګنډلے شي۔ (۲) مجازاً کلک او سخت۔

**سېرمه** :۔ (سې+ر+م) (وــــ څیرمه)

**سېرن** :۔ (سې+ر+ن) (اس۔ مذ۔ج۔ونه)سرکښه او سر زوره غورئې۔

**سېرونو** :۔(سې+رو+نو)د سېرونو (جمع) اضافي یا مجروري حالت۔

**په ــــ پَ**:۔ (پ تر۔) ډېر زیات (په وزن کښې) چې ډېر سېرونه ترې جوړېږي۔

**سېرونے** :۔ (سې+رو+نے)(ق۔اس۔ مذ) یخه هوا۔

**سېره** :۔ (سې+ر)(ق۔اس۔ مذ ج۔سېرے) د تندي یو کالے۔سیرۍ۔

**سیرۍ** :۔ (سي+ر+ۍ)(اس۔مو)(۱) وقف شوې زمکه۔چې د کوم جماعت یا خانقاه یا د کوم بزرګ اولاد ته وربخښلے شوې وي۔(۲) (ق) د تندي یو دانه دار کالے۔سیره۔

**سېرے** :۔ (سي+رے)(ق۔اس۔ مذ۔ج۔ي)(۱) شک۔ګمان۔ (۲) د سوري په لور۔مخ په سوري۔

**سِیرے** :۔ (سي+رے) (وــــ څیرے)

**ــــ کول**:۔ (وــــ څیرے کول)

**ــــ کېدل**:۔ (وــــ څیرے کېدل)

**ــــ ګریوان**:۔(وــــ څیرې ګریوان)

**ــــ ویرے**:۔(وــــ وڅیرے ویرے)

**سېرے** :۔ (سي+رے) (اس۔ مذ۔ج۔ي) ټګ۔دوکه ورکوونکے۔

تېښته مهرویان کا د اشرافو له مجلسه
خوښ دي په دوپا اوپه سیري او دوبندي (علیخان)

ستا مــخ د سیند سېرے دے
په سېري کښې تــل سېرے دے
چــاتــــه ورکــا فــروانــه
د چا کم زیات یک سېرے دے (ارزاني)

**سیریا** :۔ (سي+ري+یا)(انګ۔اس مع)سوریا۔د شام ملک۔

**سیرېدل** :۔ (سي+رې+د+ل)(وــــ څیرېدل)

**سیریس** :۔ (سي+ري+ي+س)(انګ۔ص)(۱) سنجیده(۲) سخت۔اهم۔مهم۔لوئې۔

**سیریل** :۔ (سي+ري+ي+ل) (انګ۔ص)سلسله وار۔متسلسل۔

**سیرین** :۔ (سي+ري+ي+ن)(انګ۔اس۔مع) سوري۔شامي۔

**سیږنوال/ښیږ ـــ** :- (سي+ږ+ن+وا+ل) (و ـــ ښیږنوال)

**سیږنه/ښیږ ـــ** :- (سي+ږ+ن) (و ـــ ښیږنه)

**سیز** :- (سي+ز) (انګ ـ فع) پرېښودل ـ لاس اخیستل ـ ختمول ـ یا ختمېدل

**ـــ فائر** :- (فا+ئ+ر) (انګ ـ اس ـ مذ) جنګ بندي ـ په یو بل ډزې بندول ـ

**سېزل/سېځل** :- (سې+ز+ل) (مص) (۱) سېځل ـ سوځول ـ (۲) سوځول ـ

**سیزماګرافي** :- (سي+ز+ما+ګ+را/رے+في) (انګ اس ـ مو) د مشین په ذریعه د زلزلو د حرکاتو ریکارډ کول (په لیک کښې راوستل) ـ

**سیزمالا/لوجیکل** :- (سي+ز+ما+لا/لو+جي+ک+ل) (انګ ـ ص) هغه کار یو عمل یا ځاے چې د زلزلو د تحقیق وغېره سره تړون لري ـ

**سیزمالوجي** :- (سي+ز+ما+لو+جي) (انګ ـ اس ـ مؤ) هغه علم چې پکښې د زلزلو په حقله تحقیق او انکشافات کولے شي ـ

**سیزمامیټر** :- (سي+ز+ما+مي+ټ+ر) (انګ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) هغه آله چې د زلزلو حرکاتو وغېره کچ یو اندازه اخلي ـ

**سیزن** :- (سي+ز+ن) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) موسم ـ فصل ـ (۲) د څهٔ فصل کار د پاره موزون یا مقرره وخت ـ

**سیزني** :- (سي+ز+ني) (اس ـ مو) هغه اوږده ټیپه ـ چې ماشوم په اورېني کښې د نغښتونه پس تړلے شي ـ

**سېږګے** :- (سې+ږ+ګے) (ق اس ـ مذ ـ ج ـ ي) د سپین رنګ یو خودرو ځنګلي بوټے چې نازکې پاڼې لري ـ ماشومان ئې خوري ـ

**سیږئ** :- (سي+ږ+ئ) (ق ـ اس ـ مو) د وسپنې کوږ شان میخ ـ چې پاله پرې په کنده کښې کلکولے شي ـ

**سېره** :- (سې+ګ/ژ) (اس ـ مو ـ ج ـ سیرے) (۱) د غرڅنې ماده ـ غرڅ ګه ـ ځنځلي ګه ـ (۲) هوسۍ ـ

**سیس** :- (سي+س) (اس ـ تم) جست ـ سکه ـ

په کشته پاره سیس مس تانبه زر کېږي
په سیماب کشته کار د اکسیر نهٔ شي (حافظ)

**سیستان** :- (سي+س+تا+ن) (اس ـ مع) د یو ملک نوم ـ چې فارس (یا فارستان) نه نمر خاتهٔ طرفته وو ـ

**د ـــ ډند** :- (ډ+ن+ډ) د جهیل ـ (جي+ل)

**سیستم** :- (س+س+ت+م) (و ـــ سیسټم)

**سیستماتیکي** :- (س+سي+ت+ما+تي+کي) (و ـــ سیسټې میټک)

**سېسټم** :- (سې+س+ټ+م) (انګ ـ اس ـ ج ـ ونه) طریقه ـ طور ـ لار ـ ترتیب ـ نظام

**سېسټې مے ټک** :- (سې+س+مے+ټ+ک) (انګ ـ صف) سستماتیکي ـ د یو خاص طریقې مطابق ـ منظم ـ

**سېسته** :- (سې+س+ت) (ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ تې) خوشبخته ښځه ـ هغه ښځه چې ډېر اولاد (زامن) راوړي ـ

**سیسۍ** :- (سي+س+ۍ) (اس ـ مو) مشهوره مرغۍ ـ چې د زرکې نه لږه وړه وي ـ خلق ئې د نورو مرغو د ښکار د پاره اموخته کوي ـ (په فارسۍ کښې ورته "تهو" وائي)

**سیسي** :- (سي+سي) (ق ـ اس ـ اس) هغه غوښه چې خرابه شوې او بوي ئې پرېښودے وي ـ

**ـــ کېدل** :- د غوښې خرابېدل او بد بویه کېدل ـ

**سیسے** :- (سي+سے) (ق ـ اس ـ مذ) د ګیټکو د یوې لوبې نوم ـ

**سیشن** :- (سي+ش+ن) (انګ ـ صف) د عدالت اجلاس ـ د اجلاس وخت ـ

نشست ـ

**سیطره** :- (سي+ط+ر) (ع ـ اس ـ مؤ) حکومت ـ تسلط ـ مکمل اختیار ـ

**سیغ** :- (سي+غ) (صف) رسا ـ سم ـ سیخ ـ

تـا بـه چېرې هومره کبره هومره خیال کړ
که دې نهٔ وے رنګ زیبا په صورت سیغ (خوشحال)

**سیغون** :- (سي+غُو+ن) (اس ـ مذکر) هغه اس چې ډېرو زغلېدو سره مانده او کلک شوے وي ـ سوغنے ـ

**سیف** :- (سے+ف) (ع ـ اس ـ مذ) تُوره ـ

**ـــ مَلول** :- اِص) د تیکي نه راویستلې توره ـ بربنډه توره ـ

کوم زمان به دې سر پرې باندې حافظ
ژاړه ځـان چې دا جل سیف ملول شته

**سیف** :- (سے+ف) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) محفوظ ـ خوندي ـ بې خطره ـ (۲) د فولادو هغه مضبوط صندوق یا الماری چې قیمتي ښیزونه، دولت جواهرات، مالي اهم دستاویزات وغېره پکښې کښېښودلے شي ـ

**سیفټي** :- (سے+ف+ټي) (انګ ـ اس ـ مو) سلامتیا ـ حفاظت ـ (عموماً نورو الفاظو سره راځي) ـ

**ـــ بیلټ** :- (ب+ل+ټ) (انګ تر ـ اس مذ ـ ج ـ ونه) هغه پټه چې په موټر کار یا هوائي جهاز وغېره کښې سیټ سره لګېدلې وي او د حفاظت د پاره د ګېډې نه چاپېره تړلے شي ـ حفاظتي پټه ـ

**ـــ ریزر** :- (ري+ز+ر) (انګ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د وېښتو د خرئیلو هغه اله چې د څرمن د غوڅولو نه محفوظ کړې شوې وي ـ

**ـــ ماچس** :- (ما+چ+س) (انګ تر اس مذ ـ ج ـ ونه) داورلګؤ تیلي (اورلګیټ) چې په خپله د اور اخستو نه محفوظ کړے شوے وي ـ

**ـــ وال/والو** :- (وا+ل/ل+و) (انګ تر ـ اس مذ ـ ج ـ ونه) په مشینونو کښې هغه اله چې د حفاظت د پاره پکښې جوړه کړې شوې وي ـ

**سیف علي** :- (سے+ف+علي+لي) (اس ـ مع) د ډوډې خېلو یوه څانګه ده ـ چې (قندهار خان، هاتي خېل، شین خېل/سین خېل، احمد زئ، درویش خېل) وزیر دي ـ (استوګنه ـ د بنو علاقه)

**سیف ګارډ** :- (ګا+ر+ډ) (انګ ـ اس ـ مذ) حفاظت ـ تحفظ ـ بچاؤ ـ

**سیفلي** :- (سے+ف+لي) (اس ـ مع) د کابل خېلو یوه څانګه ده ـ چې (ولي خېل، اتمان زئ، درویش خېل) وزیر دي ـ (غالباً چې د یوسف وران شکل دے)

**سیف الملوک** :- (سي+فُ+ل+م+لو+ک) (اس ـ مع) د پښتو او د فارسۍ د مشهور روماني قیصې "سیف الملوک" او بدیع الجمال هیرو ـ چې په بدري جمالې (بدریع الجمال) مئین ؤ ـ او ورپسې ئې ډېر سفرونه کړي ؤ ـ

**سیفن** :- (سي+ف+ن) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د سائینس د سائفن د قاعدې تر لاندې وله یا نهر د سړک یا د بل نهر یا سیند د لاندې نه تېرولو عمل ـ سیفون

**سیفور** :- (سي+فو+ر) (ف ـ اس ـ مذ) (۱) یو قسم توره او ډېره ربښمینه کپړه ـ (۲) د ځینو پښتنو سړو نوم ـ

**سیفه** :- (سي+ف) (اس ـ مو ـ ج ـ سیفے) د جلد سازانو یو اوزار ـ چې د جلد بندۍ نه پس د کتاب ځینډې پرې هوارولے شي ـ (ددې اوزار شکل د تورې (سبف) په شان وي ـ خو مخ ئې دننه طرف ته وي ـ

**سیفي** :- (سي+في) (مو ـ ج) یو خاص جلالي اسم چې ددې په حقله عقیده ده چې په یو خاص طریقه لوستلو سره دښمن پرې تباه کولے شي ـ

**ـــ لوستل** :- "سیفي" جلالي اسم یا دعا د چا د خرابۍ د پاره لوستل ـ

**سبک** :- (سې+ک) (اس ـ مذ) (۱) قوت ـ طاقت ـ توان ـ (۲) تاؤ ـ ګرمي ـ

**ــــ ختل**:۔(۱) کم قوته کېدل ۔ طاقت کمېدل ۔ (۲) تاؤ کمېدل ۔

**ــــ ختلے**:۔ (خ+ت+لے) (اس مف ۔ مذ ۔ ج ۔ لي)(۱) کم قوت شوے ۔ کم طاقته ۔ (۲) چې تاؤ ئې کم شوے وي ۔

**ــــ ورکوونکے**:۔ (و+ر+ک+وو+ن+کے)(اس فا ۔ ج ۔ کي)(۱) طاقت ورکوونکے ۔ مقري ۔ (۲) تاؤ ورکوونکے ۔

**سِبک** :۔ (سي+ک)(وـــ سُوک)

ــــ:۔(سي+ک)(اس ۔ مع)(ج:سیکان ۔ م ۔ سیکنه ۔ ج م: سیکنې د هند مشهور قام ۔ سکه ددې ډلې باني گرونانک ؤ ۔ چې د یو خداے منونکے ؤ ۔

**سیکټ** :۔ (س+ک+ټ)(انگ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)طائفه ۔ ټولے ۔ فرقه ۔

**سیکټر** :۔ (س+ک+ټ+ر)(انگ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) قطعه ۔ ټکړه ۔ قطاع

**سکرټ** :۔ (س+ک+ر+ټ)(انگ ۔ اس ۔ مذ)راز ۔ پټه خبره یا کار ۔ پوښلے ۔ خفیه ۔

**سیکرټر** :۔ (سې+ک+ر+ټ+ر)(فر ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ان)سکتر ۔ (انگ) سیکرټري

**سیکرټیري** :۔ (سې+ک+ر+ټے+ري)(انگ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ان)(۱) د دفتر لوے منشي ۔ سکتر ۔ سرکټر ۔ میرزا ۔ (۲) د کوم لوے حاکم ، افسر یا تاجر وغېره خاص منشي ۔ خاص مددگار ۔

**سیکرسي** :۔(سي+ک+ر+سي)(انگ ۔ اس ۔ مو) (۱) پټوالے ۔ راز ۔ پوشیدگي ۔ اخفاء ۔ (۲) هغه ځاے یا دفتر چېرته چې داسې کارونه سرته رسولے شي چې هغه بغېر د خاصو کسانو نه نورو نه پټ ساتل غواړي (۳) ځان لـه ۔یواځتیا ۔ ځانله والے ۔

**سیکرټیریټ** :۔ (سې+ک+ري+ټے+ري+ۍ+ټ)(انگ ۔ اس ۔ مذ)هغه دفتر چې د کم لوے حاکم وزیر گورنر وغېره سیکرټیان کار کوي ۔ دارالانشاء ۔ د سیکرټري یا د سیکرټریانو دفتر ۔

**سیکري فائس** :۔ (سې+ک+ري+فا+ۍ+س)(انگ ۔ اس ۔ مذ)قرباني ۔ ایثار

**سېکړو** :۔ (سې+ک+ړو)د سېکړو اضافي یا مجروري شکل دے لکه: د سېکړو په حساب ۔

**ــــ په**:ډېرې سېکړې ۔ ډېر زیات شمېر ۔

**سېکړه** :۔ (سې+ک+ړ)ه ۔ اس ۔ مو ۔ ج ۔ ړې) (۱) یو سل ۔ د سلو یو ځل شمېر ۔ د سلو ۔ سلو په شمار کښې دهره سلو د پاره دا لفظ (سېکړه) استعمالېږي ۔ لکه یوه سېکړه ۔ څلور سېکړې او دغه شان نور لکه ام پنځوس روپۍ سېکړه دي ۔ (۲) جمعیت ۔ (ق)

**سېکړه** :۔ (سې+ک+ړ)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ ړې)نعرې سورې ۔

**سیکس** :۔ (سې+ک+س)(انگ ۔ اس ۔ مذ)جنس ۔ نوع ۔ (د نر یا د ښځې)

**سیکسافون** :۔ (سے+ک+سا+فو+ن)(انگ ۔ اس ۔ مذ)یو قسم باجه ۔ ساکسفون ۔ یو قسم په خلې (پوکي) غږېدونکے ساز ۔

**سیکشن** :۔ (س+ک+ش+ن)(انگ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)برخه ۔ حصه ۔ ونډ ۔ ټوټه ۔ څانګه ۔ شعبه ۔

**ــــ آفسر**:۔ (ا+ف+س+ر)(انگ تر ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ان) د یو شعبې مشر ۔ د یوې څانګې مشر ۔

**سیکل** :۔ (سي+ک+ل)(مص)ټکورول ۔ ټکور ورکول ۔

**سېکل** :۔(سې+ک+ل)(مص)صېقل کول ۔ ځله ورکول ۔ (اصل لفظ د عربي صېقل دے)

**ــــ کول**:۔ (وـــ سیکل)

**سَیکل** :۔ (سي+ک+ل)(انگ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)د بائي سېکل مخفف دے ۔ مشهور دوه پائیز سورلي چې دپښو په تاوولو چلولے شي ۔

**سیکلے** :۔ (سي+ک+لے)(اس مف ۔ مذ ۔ ج ۔ لي)صېقل ۔ شوے ۔ زلقېدلے

**سِیکلے** :۔(سي+ک+لے)(اس ۔ مف ۔ مذ ۔ ج ۔ لي)ټکور شوے ۔ ټکور ورکړے شوے

**سیکلے** :۔(سي+ک+لے)(اس مف ۔ مذ ۔ ج ۔ لي)بدنصیبي ۔ بدقسمته ۔ بدبخته

**سیکن**:۔ (سي+ک+ن)(ق ۔ صف ۔ مذ ۔ مو ۔ ه) کم قوته سړے ۔ کم طاقته سړے ۔

**سِیکن** :۔ سي+ک+ن)(صف ۔ مذ ۔ مو ۔ ه)(۱) ښهٔ موړ ۔ ښهٔ ډک ۔ (۲) څهٔ څیز چې بني ادم بیا بیا وخوري نو اخر زړهٔ ئې ترې سیکن موړ شي ۔

**ــــ کېدل**:۔ زړهٔ مړېدل ۔ زړهٔ د څهٔ څیز نه ټکېدل ۔ (یو څیز چې سړے بیا بیا خوري نو اخر طبیعت ئې تر ېنه موړ شي) ۔ ویزاره کېدل ۔

چا وې صبر وکړه ،صبر مې وکړو

سیکن یم، کلـه په صبر کار شي (خوشحال)

**سیکن** :۔ (سي+ک+ن)(صف ۔ مذ ۔ مو ۔ ه)صېقل ۔ زلق ۔ پړق ۔ (د صېقل وران شکل دے)

**ــــ کول**:۔ صېقل کول په ریگ مال یا په بل څهٔ څیز زلولو ۔ زلق ورکول ۔ پړقول ۔ (سیکن، د عربي د صېقل وران شکل دے) ۔

**سیکنډ** :۔ (س+ک+ن+ډ)(انگ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)(۱) د منټ یو شپېتمه برخه ۔ (وخت) ۔ (۲) یوه لحظه ۔ یوه لمحه ۔ لږ شان وخت لکه: یو سیکنډ کښې راځم ۔

**په یو ــــ کښې**:۔ په ان فن کښې ۔ ډېر زر ۔

**سیکنډ** :۔ (سې+ک+ن+ډ)(انگ ۔ شمېر عدد) دوئیم ۔ د دویمې درجې ۔

**ــــ ریټ**:۔ (رے+ټ)(انگ تر ۔ صف)د دویمې درجې ۔ ادنیٰ ۔ کم قیمته ۔

**ــــ کلاس**:۔ (ک+لا+س)(انگ ۔ اس ۔ مذ)(۱) دویمه درجه ۔ په سبق کښې دویم جومات ۔ (۲) د دویمې درجې ۔ چې د اعلی درجې نهٔ وي ۔ د کمې درجې یا معیار ۔ (۳) په رېل گاډي ، سنیما یا تېټر وغېره کښې د دویمې درجې ځاے لکه: د سیکنډ کلاس ټکټ (ټکس) مې اخستے دے ۔

**ــــ ماسټر**:۔ (ما+س+ټ+ر)(انگ تر ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ان ۔ مو ۔ ه)په مدرسه کښې مشر استاذ (هېډ ماسټر) نه لاندې ، او نورو ټولو استاذانو د پاسه استاذ ۔ د دویمې درجې استاذ ۔

**ــــ هېنډ**:۔ (هې+ن+ډ) (انگ تر ۔ صف) د دویم لاس ۔ هغه څیز چې یو کس ئې (لږ یا ډېر) استعمال کړي او بیا ئې په بل خرڅوي ۔ نو دغې څیز ته سیکنډ هېنډ وائي ۔ زوړ او یا ځل استعمال کړے څیز ۔

**سېکنډري** :۔ (سې+ک+ن+ډ+ري)(انگ ۔ صف)(۱) د دویمې درجې (۲) د ثانوي درجې تعلیم یا مدرسه (ښوونځے) ۔

**سېکور** :۔(سې+ک+ؤ+ر)(صف ۔ مذ ۔ مو ۔ ه) سپک لرونکے ۔ طاقتور ۔ توانا ۔ قوتناک

**سېکولر** :۔ (سې+کو+ر)(انگ ۔ ص)عالسي ۔ دُنیوي ۔ چې مذهب سره ئې تعلق نهٔ وي ۔ دنیائي ۔ غېر مذهبي ۔

**ــــ حکومت**:۔(ح+کو+م+ت)(انگ پ تر ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) هغه حکومت (یا د حکومت طرز) چې محض دنیاوي امور سره تعلق لري او مذهب پکښې هېڅ عمل دخل نهٔ وي ۔ لادیني حکومت غېر مذهبي حکومت ۔

**سیکه** :۔ (سي+ک)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ سیکے)(۱) سکّه ۔ روپۍ ۔ اشرافي وغېره ۔ (۲) مشهور دات (فلز) ۔ سرب ۔ (۳) شکل و صورت ۔ قافیه ۔

**په چاد اور ــــ خلاصول**:زور ازمائي کول ۔ چاسره خپل زور ازمائیل ۔

**سیکه** :۔ (سي+ک)(صف) د یو قسم تبې صفت دے ۔

**سکۍ** :۔ (سي+ک+ۍ)(اس ۔ مو) هوسۍ ۔ (ماده) ۔

**سیکي** :۔ (سي+کي) (ف ۔ صف)د "سه یکي" مخفف دے ۔ هغه شرابو ته وائي چې په څوښ سره دریمه برخه پاتې شي ۔

**سیکے** :- (سي+کې)(اس ـ مذ)چا رارتشه شراب ـ

**سیکیورټي** :- (سي+ک+یو+ر+ټي)(انګ ـ اس ـ مو)(۱) ضمانت(۲) حفاظت ـ امنیت

**سیګي** :- (سي+ګي) (اس ـ مـع) د تـورو ترینـو یـو ښـاخ دے ـ د سـیګیو ځانګې دا دي ـ خواجه زئ او فقیر زئ ـ

**سېل** :- (سې+ل)(اس ـ مـذ ـ ج ـ ونه)(۱) تماشه ـ ننداره ـ (۲) سېر ـ هوا خوري ـ (۳) (ماشومان په کتاب کښې تصوریونه کتنـه ـ (۴) د مارغـانو یـو ځـاے الوتنه ـ (۵) سېلاب ـ

**ـــــ ګورے** :ـ (ګ+رے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ي)سېلانے ـ سېل کوونکے ـ سیاح ـ

**سېل** :- (سې+ل)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) ګډا اوسماع ـ ساز او نغمه سرود بګت

**سېل** :- (سې+ل)(ف ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)سېلاب ـ

**ـــــ پیما** :ـ (پې+ما)(ف تر ـ اس ـ مو ـ ج ـ ګانې)هغـه الـه چې د سېلاب د اوبـو رفتار (اوزور) پرې معلوموله شي ـ

**سېل** :- (سې+ل)(اس ـ مذ) په یو ځاے ډېر مارغان ـ

ستا په مینه بند شوم د زړهٔ غوښې مې خوراک شوې
تل لکـه ویستلے طـوطیان ببل ګـرځم لـه سېل (خ م ب)

**سېل** :- (سې+ل)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) خرڅـون ـ خـرڅ ـ (۲) عمومـاً د ځیزونو (کال په کال یا وخت په وخت) په کم قیمت خرڅول ـ

**ـــــ لګېدل** :ـ د ځیزونو په ارزان او رعایتي قیمتونو خرڅېدل ـ

**ـــــ مین** :ـ (مے+ن)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان)د ځیزونو خرڅوونکے ـ

**سیل** :- (س ي+ل)(انګ ـ اس ـ مـذ ـ ج ـ ونـه)(۱) کـوټګې ـ وړه کوټـه ـ کـوټـیې ـ حجره ـ زوایه چې په خلوت کښې د عبادت یا د مطالعې د پاره یا بـل کـوم مختصر کار د پاره جوړوله شي ـ (۲) خلیه ـ

**سِیل** :- (سي+ل)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) یو سمندري ځناور دے ـ چې سر ئې د سپي په شـان او نـور وجود ئې د کـب (مهـي) پـه شـان وي ـ سګلاهو ـ سنګلاهو ـ

**سِیل** :- (سي+ل)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) (۱) مُهر ـ ټاپـه ـ چاپـه ـ (۲) د وسپنې یا د بل کم یو دات نه جوړ مهر ـ چې په ویلې کړې لاکو لګوله شي ـ

**ـــــ کول** :ـ د ځهٔ ځیز د تړلو نه پس په غُټه باندې ـ اول ویلې شوے لاک اچول او بیا پرې د اوسپنې "مهر" ټاپـه لګول چې بغېر ددې ټاپې د مـاتولو دغـه تړلے ځیز نهٔ شي پرانستلے کېدے سر په مهر کول ـ

**سېلاب** :- (سې+لا+ب)(ف ـ اس ـ مـذ ـ ج ـ ونـه)(۱) پـه سـیند یـا خـوړ کښـې د معمول نه ډېرې زیاتې اوبهٔ زور کښې راتلل (چې وجه ئې عموماً د منبعې طرف ته بارانونه وي) ـ (۲) بهیر ـ د خلقو ډېر لوے هجوم ـ

**ـــــ راتلل** :ـ په خوړ یا سیند کښې ، د بـارانونو وغېره لـه کبلـه ډېرې زیاتې او تېزې اوبهٔ راتلل ـ

**په ـــــ مخ پورته لامبو وهل** :ـ ناممکن کار کول ـ ناشونے کوښښ کول ـ

**د ـــــ غوندې راتلل** :ـ ناګهانه او په ډېر زور شور کښې راتلل ـ

**سېلابي** :-(سې+لا+بي)(اس ـ مـع)(۱) هغـه اوبـهٔ چې پـه سـین یـا خـوړ کښـې د سېلاب راتلو پـه وجـه پـه ملک خوري شوې وي ـ (۲) هغـه زمکـه چې د سېلاب په اوبو اوبولے شي ـ (۳) هغه ځیز چې سېلاب راوړے وي ـ

**ـــــ زمکه** :ـ (ز+م+ک)(اس ـ مو ـ ج ـ کې) هغـه زمکـه چـې د خـوړ وغېـره د سـېلاب پـه اوبـو اوبـهٔ کېـږي ـ یعنـي چې انحصـار ئـې د سـېلاب پـه (بې اعتباره) ابووي ـ هغه نظم وغېره چې سېلابونو (سلے بل) سره تعلق لري ـ یعني کچ پیمانه ئې د سېلابو نهٔ وي ـ (په مقابله کښې د عروض) ـ

**ـــــ حرکت** :ـ (په شعر کښې د وزن د جوړولو د پاره چې کوم زور یا زېر لګولے شي ـ

**ـــــ شاعري** :ـ (شا+ع+ري)(فپ تر ـ اس ـ مو)هغـه شاعري چې د "ټـول" (وزن) طریقه ئې د هندي ژبو/زبو پخوانۍ وي یعنـي د سېلابونو په شمېر کچ کولے شي ـ (په مقابله کښې د "عروضي شاعري" چې د عربۍ د عروضو په ساتلو تللے شي ـ

**سېلات** :- (سې+لا+ت)(ق ـ اس ـ مذ)د سر سام مرض ـ

**سېلاره** :- (سې+لا+ر)(اس ـ مو ـ ج ـ رے)څادر ـ ربښمن زنانه څادر ـ سالاره

**سېلانے** :- (سې+لا+نے)(اس ـ مذ ـ ج ـ ان ـ مـو ـ ي)(۱) سـېل کوونکے ـ سیاح ـ سفرونه کوونکے ـ ښار په ښار یا ملک په ملک ګرځېدونکے ـ (۲) تماشه کوونکے ـ تماشاچي ـ

**سېلاني** :- (سې+لا+ني)(اس ـ مع)د مار پالې یا مار پائي یوه څانګه ده ـ سپین ترین دي ـ

**سېلاؤ** :- (سې+لا+ؤ)(وـــ سېلاب)

**سېلاوه** :- (سـې+لا+و)(اس ـمـو ـ ج ـ وې)هغـه لرګـي خشـاک چې سـېلاب ئـې راوړي، شاوړے ـ ګنګخړے ـ

**سېلاوه** :- (سې+لا+و)(اس ـ مو ـ ج ـ وې)لویه چاړهٔ ـ پیش قوضه ـ

**سېلاوي** :- (سې+لا+وي)(وـــ سېلابي)

**سېلتے** :- (سې+ل+تے)(صف ـ مذ ـ مو ـ ښتې)سرسام وهلے ـ د سر سام مریض ـ

**ـــــ کېدل** :ـ سرسام کېدل ـ سرسامي کېدل ـ

**سېلري** :- (سې+ل+ري)(انګ ـ اس ـ مو) تنخواه ـ مشاهر ـ

**سېلزمین** :- (سې+ل+ز+م+ن)(انګ تـر ـ اسم ـ مـذ ـ ج ـ ان)(۱) پـه دوکـان کښـې هغـه مـلازم چې د دوکـان ځیزونـه خرڅوي ـ (۲) د کـومې لـوے تجـارتي ، اداري یـا کارخـانې هغـه مـلازم چې ددغـې اداري یـا کارخـانې ځیزونـه ګرځوي او خرڅوي یا دوکاندارانو ته رسوي ـ

**سېلف** :- (سې+ل+ف) (اس ـ صفت ـ سابقه)پخپله ـ په ځان ـ ځان ـ

**ـــــ ریسپېکټ** :ـ (ر+س+پ+ک+ټ)(انګ تر ـ اس ـ مذ)د خپـل ځـان عزت ـ عزت نفس ـ غېرت ـ پت ـ

**ـــــ میډ** :ـ (مې+ډ)(انګ تر ـ صف)(۱) هغه کس چې خپل ځان ئې پخپـل محنت او قابلیت لوے ځاے ته رسولے وي ـ په لوبو خلقو کښې شمېرلے شي ـ (۲) پخپله جوړ شوے ـ

**سـیلګرے** :- (ا ـ ق)(سـي+ل+ګ+رے)(اس فـا ـ مـذ ـ ج ـ ي)سـاتندوے ـ سیلندوے ـ حامي سیلګرے (عموماً سیله او سیلګرے وئیلے شي) یعني معروفې ـ ي ، سره ـ

**سیلګري** :-(س+ل+ګ+ري) (اس ـ مو ـ ج ـ ی)سیله ـ طرفداري ـ پره ـ

**سیلمن** :- (سي+ل+م+ن)(انګ اس ـ مذ)یو خاص قسم کب ـ چې غوښه ئې سره بخنه وي ـ

**سیلمه** :- (سې+ل+م) (ق اس ـ مو ـ ج ـ سیلمې)(۱) خاندان ـ ټبر ـ(۲) همسـایه ـ ګاونډي ـ ګرانډي ـ

**سیلمه** :- (سې+ل+م)(صف ـ مو ـ ج ـ سیلمې)(۱) ټول ـ تمامي ـ واړه ـ (عموماً په اضافي حالت کښې راځي) ـ (۲) مخامخ ـ ښکاره ـ

**ـــــ کول** :ـ (را ـ در ـ ورسره راځي) ـ مخامخ کول ـ ښکاره کول ـ

**ـــــ کېدل** :ـ (را ـ ور ـ درسره استعمالیږي)مخامخ کېدل ـ ښکاره کېدل ـ

**سیلمې** :- (سې+ل+مې)(صف ـ ج)د سیلمه اضافي حالت دے ـ لکه د سیلمې ټول ـ واړه ـ

**سیلن** :- (سې+ل+ن) (صف ـ مذ ـ مو ـ ه)تور ـ سکڼه ـ

**سېلندوئې** :- (سې+ل+ن+دو+ئې)(اس ـ مذ ـ ج ـ ی)ساتندوئې پاس ـ سیلګرے

۔ (عموماً معروفې "ي" سره سيلندوئي وئيلے شي) ۔

**سپلندے** :- (سپ+ل+ن+دے) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ي) د سر په وينسو کښې لار ۔ لار پياڅه

**سپلنگ** :- (سپ+ل+ن+گ) (انگ ۔ اس ۔ مذ) چت ۔ د چت لاندې نيے مخ ۔ (چې کوټه کښې دننه وي) ۔

**ـــــ روز** :- (رو+ز) (انگ تر ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) د بجلۍ هغه ټوپۍ شان چې په چت کښې لګېدلې وي او د هغې د سوري نه د بجلۍ تارونه راوتي وي او ښکته ورسره بلب وغېره زوړند وي ۔

**ـــــ ليمپ** :- (لے+م+پ) (انگ تر ۔ اس تر ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) د بجلۍ هغه ليمپ چې چت سره لګېدلے وي ۔

**سپلو** :- (سپ+لو) (ق ۔ اس ۔ مذ) د غوا د لوشلو يو خاص طريقه ۔ چې د غوا تري په دوو ګوتو کښې ونيسي او راکاږي ۔

**سپلون** :- (سے+لو+ن) (اس ۔ مع) د هندوستان سهيل طرفته په بحر هند کښې يوه جزيرهـ ده ۔ اوس ورته سري لنکا وائي خلق اکثر بده مذهب واله دي ۔ مسلمانان هم پکښې شته ۔ دارلحکومت ئې کولمبو دے ۔

**سپلوے** :- (سپ+ل+وے) (اس ۔ مذ) اسوېلے ۔ اروا ۔ روح ۔ ساه ۔

**ـــــ کول** :- (مص تر) سوړ اسوېلے کول ۔

**سيلوے** :- وکښل :- سوړ اسوېلے کول ۔

ستا غمونو هسې ټوغ کړم

وکښے نـــهٔ شمه سيوے (خوشحال)

**سيله** :- (سپ+ل) (اس ۔ مو ۔ ج ۔ سيلے) طرفداري ۔ پره ، مرسته ۔ حمايت ۔

**ـــــ کول** :- (مص تر) طرف داري کول ۔ حمايت کول ۔ پره کول ۔

**ـــــ په** :- په مرسته ، په طرفداري ۔

چـــې ئې بنجره ازلي راغله اصيله

دا فلک ئې همېشه ګرځي په سيله (خوشحال)

**په ـــــ کېدل** :- په طرف کېدل ۔ امدادي کېدل ۔ حمايتي کېدل ۔

خپل پردي په د هېڅوک په سيله نه شي

اے خوشاله که د بخت نه شي په سيلے (خوشحال)

**ـــــ** :- (سپ+له) (اس ۔ مؤ) (و ـــــ سيله)

**سپلۍ** :- (سپ+ل+ئ)

**سـپلے** :- (سپ+لے) (اس (۱) مذکر ۔ (۲) مونث) د بزو د وېښتو (ژغوني) نه غښتلے شوے پړے ۔

**سِپلۍ** :- (سپ+ل+ی) (اس ۔ مو) تېز باد ۔ طوفان ۔

په يو غم مې په زړهٔ بل پاس نزول کا

زړهٔ يـــو سيلۍ د غم نهٔ دے وهلے (سعيد ختک)

**ـــــ راتلل (په چا)** :- تباهي راتلل ۔ برباد ېدل ۔

**ـــــ وړل/اوړل** :- د سيلۍ (څهٔ سپک ځيز) ځان سره الوزول ۔

**ساګ ـــــ وړل** :- وارخطا کېدل ۔ اربان دريان پاتې کېدل ۔

**لکه د ـــــ راتلل** :- د سيلۍ (طوفان) په شان تېزۍ او زور سره راتلل ۔

**سَپلي** :- (سپ+لي) سپل کوونکے ۔ په سپل الوتونکے ۔

**سپلي** :- (سپ+لي) (اس ۔ مو) د کچو بنګړي ۔ سولي ۔ څولي ۔

**سپلے** :- (سپ+لے) (ق ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ لي) د پنير يوه مخصوصه مايه ۔

**ـــــ** :- (سپ+لے) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ سيلي) يو خوشوئينه بوټے دے ۔ د بوږ بوکې پې شان يا د کنډيالي په شان ۔

**سپلے** :- (سپ+لے) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ لي) طرفدر ۔ حمايتي ۔ پره يا امداد کوونکے ۔

**ـــــ** :- (سپ+لے) (رق) (اس ۔ مذ ۔ ج ۔ لي) چڼ چڼه ۔ مشهوره کورنۍ مرغۍ ۔

**ـــــ** :- (سپ+لے) (اق ۔ اس ۔ م ۔ ج ۔ لي) سر کښه ۔ عاق شوې ۔

**ـــــ** :- (سپ+لے) (اس ۔ مذ) شوانه ۔ څڅنګے ۔ د راڅه (کاکړ) د ماشومانو تندے چې پوش وي ۔ ۔

**سيليبند** :- (سپ+لي+ب+ن+د) (ق اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) وړوکے پوستين ۔

**سيليکټ** :- (سپ+ل+ک+ټ) (انګ ۔ فعل) چوڼ کول ۔ منتخب کول ۔ غوره خوښول ۔ (په پښتو کښې نورو الفاظو سره استعمالېږي)

**ـــــ کول** :- چوڼ کول ۔ منتخب کول ۔ غوره کول ۔

**ـــــ کېدل** :- چوڼ کېدل ۔ منتخب کېدل ۔ غوره کېدل ۔ په انتخاب کښې راتلل ۔

**سيلېکشن** :- (سپ+ل+ک+ش+ن) (انګ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) انتخاب ۔ چوڼ کونه ۔ ټاکنه ۔ غوره کونه ۔

**سيم** :- (سپ+م) (اس جم) (۱) مشهور دات دے ۔ جينت ۔ (۲) فارسي ۔ سپين زر ۔ چاندي ۔ (په پښتو کښې په دې معنٰی کښې د فارسۍ په مرکباتو کښې استعمالېږي) لکه سيم و زر ۔ يا سيم په طور د صفت) ۔

**ـــــ کوب** :- (کو+ب) (ف تر ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ان) هغه سړے چې سپين زر ټکوي ۔ د سپينو زرو نه په ټکولو ورق جوړوونکے ۔

**ـــــ وزر** :- سپين زر او سرهٔ زر ډېر مال دولت ۔

چـــې لـــه آبــــه له حرمته سره نه وي

خدا ے ورمه کړه چاته هسې سيم وزر (رحمان)

**ـــــ** :- (سپ+م) (ف ۔ سابقه) د فارسۍ لفظ دے چې معنٰی ئې سپين زر (چاندي ده) په فارسۍ مرکباتو کښې عموماً د معشوقې د صفت په طور استعمالېږي او معنٰی ئې (د پښتو زرو په شان) سپين ده ۔ لکه سيم تن ، سيم تن ، سيم غبغب ۔ وغېره ۔

**سيما** :- (سپ+ما) (ق ۔ اس ۔ مذ) د دېوال سورے ۔ سرپنا ۔ سيب ۔

**سِيما** :- (سپ+ما) (ف ۔ اس ۔ مذ) تندے ۔

ښکلي خوبرويان چې حورمثال بدرسيما وي

سپين مخ ئې بې حسنه ګرد غبار د ببلتانهٔ کا (حافظ)

**ـــــ پوهه** :- (پو+ه) (رق) د اقتصاد علم ۔ (نوے ترکيب دے)

**سيماب** :- (سپ+ما+ب) (ف ۔ اس ۔ جم) پاره ۔ مشهور فلز ۔

که لمبې وربانديې بلـــې کا ، ايرې شي

د ژوندون هنـــر بـــه ځي له سيمابه (خوشحال)

**سيمافور** :- (سپ+ما+فو+ر) (انګ ۔ اس) د اشاراتو په ذريعه د پيغام رسانۍ يو طريقه

**سيماني** :- (سپ+ما+ني) (اس ۔ مع) د سپين ترينو يو ښاخ دے ۔ د سيمانيو څانګې دا دي ۔ چرکيزي ، سمبوزئ او هلال زئ ۔ (استوګه: لورالوئ)

**سپماي** :- (سپ+ما+يَ) (اس ۔ مو ۔ ج ۔ يے) يو قسم تور رنګ ۔ چې سنپخرې په کوزه (لوښې) کښې واچوي ۔ بې څهٔ ورځې پس ترې دغه رنګ جوړ شي ۔ دوبيان پرې جامې رنګوي ۔

**سيمبر** :- (سپ+م+ب+ر) (ه ۔ اس ۔ مذ) د هندوانو يو رسم ؤ ۔ چې راجګانو به خپلو لوڼو له د خپل خاوند پخپله خوښولو اختيار وکړو ۔ په دې کښې به يو سخت شرط هم کښېښودے شو ۔ د ملکونو شاهزادګان به راجمع شول ۔ شاهزادګۍ به د هغهٔ په غاړه کښې د خپلې خوښې د اظهار د پاره د ګلونو هار وچوه ۔ (اصل لفظ **سومبر** دے ۔ سيمبر ئې وران شکل دے) ۔

**سپمپل** :- (سپ+م+پ+ل) (انګ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه) نمونه ۔ چې د انبار يا د

ډېر مقدار د جنس یا څیزونو نه لږ شان یا یو څیز ګاهګ ته د ښودنې د پاره وړاندې کړے شي ـ

**سیمټ** :-(سي+م+ټ)(انګ ـ اس جم) د سیمنټ بدل شکل دے ـ (و-سیمنټ)

**ـــ کول**:ـ (۱) کلک ښنبولول ـ مضبوط پېوندول ـ (۲) په سیمټو لېوول

**سیمرغ** :- (سي+م+ر+غ)(ف ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان)د قیصو یو فرضي مارغۀ دف ـ چې ډېر زیات لوے او طاقت واله دے ـ بني ادم ئې په وزرو سور شي نوکوه قاف ته ئې ورسوي ـ

**سیمسار** :- (سي+م+سا+ر)(اس ـ مذ)(و ـــ سمساره)

**سیمګل** :- (سي+م+ګ+ل)(اس ـ مذ)لیو ـ پلستر ـ

**ـــ کول**:ـلیو کول ـ پلستر کول ـ

**سېملے سپلکے** :- (سې+م+لے+س+ پ ل+کے)(صف ـ مذ)هغه اس چې پښې او تندے ئې سپین وي ـ (په فارسۍ کښې ورته پنج کلیان وائي) ـ

**سیمنټ** :- (سي+م+ن+ټ)(انګ ـ اس جم)د کاڼو نه جوړ شوے هغه مېده پوډر چې د عمارت په جوړولو کښې پکارولے شي ـ سیمټ ـ

**سیمو** :- (سي+مو) د سیم اضافي او مجروري شکل دے ـ

**د ـــ تار**:ـ(تا+ر)فپ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)هغه نرے تار چې د وسپنې نه جوړ شوې وي ـ

**سیمه** :- (سي+م)(اس ـ مؤ ـ ج ـ سیمې)طرف ـلور ـ علاقه ـ ناحیه ـ

**ـــ ځادر**:ـ(ت)+سا+ر)(رق) (اس ـ مذ ـ ج ـ ان)هغه لښکر چې کومې خاصې علاقې د حفاظت د پاره مقرر شوې وي ـ (نوې اختراع) ـ

**ـــ نیول**:ـ پناه نیول ـ پناه غوښتل ـ

**ـــ ئیز**:ـ(اي+ز)علاقائي ـ سرحدي ـ

**ـــ ئیز تړون**:ـ علاقائي تړون ـ علاقائي تعلق ـ سرحدي معاهده۔

**سئ مئ** :- (س+ئ+م+ئ)(صف ـ مو)شرمنده ـ خجل ـ (غالباً چې د هندۍ د "چهوئي موئي" نه اخستے شوے دے ـ چې یو ډېر نازک ګل دے ـ چې ګوتې ور وړلو سره مړاوې کېږي او کنایةً ډېرې شرمناکې او حیاناکې جینۍ د پاره استعمالېږي) ـ

**سیمیا** :-(سي+ مي +ا) (ف ـ مو ) یو خاص علم دے چې پکښې موهوم غندې څیزونه ښودلے کېږي ـ او روحونه دیو بدن نه بل بدن ته اړولے شي ـ جادو ـ سحر

په دالــوڅـو پوڅـو نه رسم تر یاره
د سیمـیا علم نشته،چې مـارغۀ شم (خوشحال)

**سیمین** :- (سي+مي+ن)(ف ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه)د سپینو زرو (چاندۍ) په شان عموماً د معشوقې د صفت په طور استعمالېږي ـ

**ـــ بدن**:ـ(ب+د+ن)(ف تر ـ مذ ـ مو ـ ه) سپین بدن واله ـ معشوقه ـ محبوبه ـ

سپین ئې پاک دراز ګردن ؤ
ګیسوتـور،سیمین بـدن ؤ (حافظ)

**ـــ تن**:ـ(ت+ن)(ز ر ـ صفت ـ مذ ـ ج ـ ه)سپین بدن واله ـ

**ـــ عارض**:ـ(عا+ر+ض)(ف تر ـ صف ـ مذ ـ ج ـ ه)سپینو انتګو واله ـ مجازاً معشوقه ـ محبوب ـ

**ـــ عذار**:ـ (ع+ذا+ر)سپینو انتګو واله مجازاً معشوقه محبوب ـ

**سین** :- (سي+ن)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د یو حرف نوم ـ وګوره "س" ـ

ـــ:ـ (سي+ن)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)رائے ـ اتفاق ـ مصلحت ـ

**ـــ یو کول**:ـرائې یوه کول ـ اتفاق کول ـ

ـــ:ـ (سي+ن)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د سیند مخفف دے ـ په معنٰی د دریاب ، دریا

**ـــ ابا**:ـ(ا+با)(اس ـ مع) د سیندونو پلار ـ دریائې سیند (سنده) ته وائي ـ عموماً ورته "اباسین" وائي ـ

**ـــ څنډه**:ـ (ت)س+ن+ډ) (رق)و ـــ سین غاړه ـ

**ـــ سترګه**:ـ(اس ـ مو ـ ج ـ ګے)لوئې مراور پد ـ چې په صدف کښې یوه دانه وي ـنره مرغلره ـ

**ـــ غاړه**:ـ (غا+ړ) (رق)(اس ـ مو ـ ج ـ ړے)د دریاب غاړه ـ د سیند څنډه ـ

**ـــ منځ**:ـ(م+(د)+ن+ز)د دریاب مینځ ـ

**سِین** :- (سي+ن)انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)(۱) منظر ـ د ننداري څیز ـ(۲) د تیئټر وغېره هغه پړده ـ چې څۀ خاص منظر پرې جوړ شوے وي ـ (لکه: دځنګل منظر ، یا د محل منظر ، د باغ منظر وغېره) ـ (۳) په ډرامه کښې د یو منظر یا مخې مکالمې وغېره ـ

**ـــ ډراپ**:-(ډ+را+پ)(انګ ـ اس ـ مذ)د تیئټر په پړدو کښې هغه پړده چې د ډرامې ختمېدو یا ډرامې د یوې برخې په ختمېد رازوړندولې شي

**سینا** :- (سي+نا)(اس ـ مع ـ مذ)د شېخ بوعلي د پلار نوم ـ (ځینې وائي چې د نیکۀ نوم ئې دے) ـ

**د ـــ زوئې**:ـابن سینا ـ بوعلي سینا ـ

**سېنتري** :- (سې+ن+ت+ري) (اس ـ مذ)(و ـــ سنتري)

**سېنټ** :- (سې+ن+ټ)(انګ ـ اس مذ ـ ج ـ ان)د عیسائیانو د بزرګانو نوم سره راځي ـ بزرګ ـ ولي ـ د ډېرو کلو ښاریو وغېره د نومونو سره هم راځي ـ چې د دغو بزرګانو په نوم نومړلے شوے وي ـ

**سینټ** :- (س+ن+ټ)(انګ ـ اس ـ جم) خوشبوي ـ د خوشبوي مائع ـ

ـــ:ـ (س+ن+ټ) (انګ ـاس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د امریکې یوه وړه سکه ـ چې د ډالر لسه برخه ده ـ

**سینټر** :- (س+ن+ټ+ر)(انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)مرکز (که د دائرې وي او که د کومې ادارې) ـ

**سېنټري** :- (سې+ن+ټ+ري) (انګ ـ صف)صحت سر متعلق ـ د صحت سره تړلې کارونه ـ

**سېنټ هلینا** :- (سې+ن+ټ+ه+لي+نا)(اس ـ مع) په بحر او قیانوس کښې دیوې جزیرې نوم ـ چې نیپولین پکښې قېد کړے شوے ؤ ـ

**سېنټ یا ګو** :- (سې+ن+ټ+یا+ګو)(اس ـ مع)د یو ښار نوم ـ

**سینټي** :- (س+ن+ټي)(انګ ـ سابقه)د انګریزۍ سابقه ده ـ چې نورو الفاظو نه وړاندې لګي ـ او د "سلو" معنٰی ورکوي ـ

**ـــ ګرام**:ـ (ګ+را+م) (انګ تر ـ اس ـ مذ)یو ډېر سپک وزن ـ چې د "ګرام" سلمه برخه وي ـ سانټي ګرام ـ

**ـــ ګرېډ**:ـ (ګ+رے+ډ)(انګ تر ـ صف) هغه ترمامیټر چې انجماد د صفر درجې نه د اوبو د یشیدو تر حرارته پورې کښې سل درجې وي ـ سانټي ګراډ ـ

**ـــ میټر**:-(مي+ټ+ر) (انګ تر ـ مذ ـ ج ـ ونه) د کچ یوه پېمانه ـ چې د میټر سلمه برخه وي ـ سانټي متر ـ

**سینځله** :- (سي+ن+ځ+ل)(اس مو ـ ج ـ لے)یوه مېوه چې د عناب هومره وي ـ ددې مېوې دانې ته هم سینځله وائي ـ سنځله رنګ ګلاب بوي د سینځلې (متل)

**سینچري** :- (س+ن+چ+ري)(انګ ـ اس ـ مو)(۱) صدي ـ پېړۍ ـ د سلو کالو خت یا وقفه ـ (۲) د کرکټ په لوبه کښې سل منډې برابر ول ـ

**ـــ جوړول**:ـد کرکټ په لوبه کښې سل منډې (رن) پوره کول۔

**سینځچه** :- (سي+ن+خ+چ) (ق)(و ـــ سینڅچه)

**سین خېل**:- (سي+ن+خېل) (اس ـ مع) د ابا خېلو یوه څانګه ده ـ چې تته بیټني دي

**ــــ (ددغه)** :- (اس ـ مع) د میا خېلو یو څانګه ده ـ چې لوهاني پاوندي وي ـ (استوګنه ـ ډېره اسمٰعیل خان) ـ

**ــــ**:- (سي+ن+خېل) (اس ـ مع) د اتمانزو یوه څانګه ده چې (برراني زئ، اکوزئ) یوسفزي دي ـ (استوګنه: سوات) ـ

**ــــ**:- (سي+ن+خېل) (اس ـ مع) د خاکي زو یوه څانګه ده ـ چې (اشازئ، الیاس زئ) بنېر وال دي ـ

**ــــ (ددغه)** :- (اس ـ مع) د ګدائیزو یوه څانګه ده ـ چې الیاس زئ بنېر وال دي

**ــــ**:- (و ـــ حسن خېل) ـــ (ددغه) :- (و ـــ سین خېل)

**سیند** :- (سي+ن+د) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) دریاب ـ دریا ـ

**ــــ ماڼو**:- د اوبو سرے ـ ادم ابي ـ

**ــــ لاوو**:- (لا+وو) (پ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ګان) سګ لاهو ـ سنګلاهو ـ مشهور ابي ځناور ـ چې سر ئې لکه د سپي وي ـ او نور وجود ئې کب وي ـ

**ــــ لاهو**:- (لا+هو) (و ـــ سیندلاوو)

**ــــ مشر**:- ادمیرال ـ ایډمرل ـ امیرالبحر ـ

**ــــ تور**:- (تو+ر) (اس ـ مع) مشهوره بحیره ـ بحره اسود ـ

**ــــ داوقیانوس**:- (د، اؤ+ق+یا+نو+س) (اس ـ مع) مشهور سمندر ـ بحر او قیانوس ـ

**ــــ لنډے**:- (ل+ن+ډ+ے) (اس ـ مع) د کابل سیند چې د پېښور خاورې ته راکوز شي او د سوات سیند ورسره یو ځاے شي ـ نو بیا تر اټکه ورته لنډے سیند وائي ـ "یا لنډے سین" وائي ـ

**سیندک** :- (س+ن+د+ک) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان) نشانه باز ـ د نخښې د ویشتو مړنے (که په لینده وي او که په ټوپک) ـ

**سیندنے** :- (سي+ن+د+نے) (صف ـ مذ ـ ج ـ ني ـ مو ـ نۍ) سیند سره تعلق لرونکے ـ دریابي ابي سمندري ـ

**سیندے** :- (سي+ن+د+ے) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ي) د ښځو د سر په وېښتو کښې لاړ ـ

**سېنډل** :- (سي+ن+ډ+ل) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) خاص قسم پېزار ـ چې د تلي د پاسه پرې ستمې یا پټے لګېدلې وي ـ ددې مخفف قسمونه دي ـ

**سېنډوچ** :- (سي+ن+ډ+و+چ) (انګ ـ تر ـ اس ـ مذ) د مغربیانو د اسان خوراک یو طریقه ده ـ چې د ډبل روټۍ یوه ټکړه واخلي د پاسه پرې پخه قیمه ـ الوګان وغېره کېږدي او د ډبل روټۍ بله ټکړه پرې د پاسه کېږدي ـ چې دغه قیمه وغېره پرې پټه شي ـ بیا ددې نه محاورې ـ سینډوچ کول جوړه شوه ـ یعني د دوو څیزونو په مینځ کښې دل کول ـ

**سینډه** :- (سي+ن+ډ) (و ـــ څنډه)

**سینري** :- (سي+ن+ري) (انګ ـ اس ـ مو) (۱) منظر ـ نظاره ـ ننداره ـ د قدرتي ښکلا یو منظر ـ (۲) په تیټر کښې هغه ساز و سامان چې د یوې ډرامې کوم خاص برخې د پاره پس منظر پرې جوړولے شي ـ او تیارولے شي ـ

**سینچه** :- (سي+ن+ر+چ) (ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ چې) (۱) هغه اله چې کالتوس پرې ډکو ـ (۲) اندازه ـ مقیاس ـ

**سین زئ** :- (سي+ن+ز+ئ) (اس ـ مع) د بیبل خېلو یوه څانګه ده ـ موسیٰ خېل دي ـ د سین خېلو څانګې ـ جمال زي او ابراهیم زئ ـ

**ــــ (ددغه)** :- (اس ـ مع) د اسمٰعیل خېلو یوه څانګه ده ـ زمارئ دي (استوګنه: لورالوئ)

**سین شین** :- (باجوړ) (اس ـ مذ) باره ـ یوه ښکاري مرغۍ ده ـ

**سینکشن** :- (سي+ن+ک+ش+ن) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) اجازت ـ منظوري ـ

**ــــ غوښتل**:- منظوري غوښتل ـ د څهٔ کار یا د رقم د لګښت وغېره د پاره د با اختیاره افسر نه اجازت غوښتل ـ

**ــــ ورکول**:- منظوري کول ـ نصیب کول ـ

**سینکن** :- (سي+ن+ک+ن) (ق ـ اس ـ مذ) یخ باد ـ

**سینکیا** :- (سي+ن+ک+یا) (اس ـ مو ـ ج ـ ګانې) منشهور قاتل زهر ـ سنکیا ـ سنکها

**ــــ زیړه**:- (ز+ي+ړ) (پ تر ـ اس ـ مو) د سنکیا (سنکیا ـ سنکهیا) یو قسم دے چې زیړ رنګ لري ـ په دارو کښې هم استعمالېږي ـ

**سینګ** :- (سي+ن+ګ) (ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) برابرے ـ مساوات ـ توازن ـ

**سینګ** :- (سي+ن+ګ)

**سینګه** :- (سي+ن+ګ) (و ـــ څنګ او څنګه)

**سینګار** :- (سي+ن+ګا+ر) (ه ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) ارائش ـ د ځان جوړونه ـ د ځان ښکلا (چې په سرخۍ پوډرو کالو وغېره جولے شي) ـ

**ــــ کول**:- مص تر) ځان جوړول ـ ځان اراسته کول ـ ځان ښکلے کول ـ د ځان ارائش کول ـ

**ــــ بکس**:- (ب+ک+س) (انګ پ تر ـ اس ـ ج ـ ونه) هغه وړوکے بکس چې پکښې د زنانهٔ د سنګار او ځان جوړونې وړوکے سامان لکه سرخي پوډر وغېره پکښې پراتهٔ وي ـ

**ــــ دان**:- (دا+ن) (و ـــ سنګار بکس)

**ــــ کمره**:- (ک+م+ر)

**ــــ کوټه**:- (کو+ټ) د زنانه ښ د سینګار یا ارائش کولو خاص کوټه ـ چې د سینګار سامان او مېز وغېره پکښې پراتهٔ وي ـ

**ــــ مېز**:- (مې+ز) (ف پ تر ـ اس ـ ج ـ ونه) هغه مېز چې مخامخ پکښې لویه ائینه لګېدلې وي ـ او د سنګار څیزونه پرې پراتهٔ وي ـ ښځې ورته کېښني او ځان جوړوي ـ

**ــــ واله**:- (وا+ل) (اس ـ فا) هغه کس چې د سنګار سامان خرڅوي ـ

**سینګارلے** :- (سي+ن+ګا+ر+لے) (مف ـ مذ) اراسته ـ ل سینګار کړے ـ ښکلے ـ زینت دار ـ مزین ـ

**سینګارول** :- (سي+ن+ګا+ر+ؤ+ل) (مص) (۱) (لازم) اراسته کول ـ ارائش کول ـ ځان جوړول ـ (۲) (متعدي) د بل ارائش کول ـ د بل ښکلا کول ـ اراسته کول

**سینګاروونکے** :- (سي+ن+ګا+ر+وو+ن+کے) (فاع ـ مذ ـ ج ـ کي) ارائش کوونکے ـ زینت ورکونکے ـ ډول ورکوونکے ـ اراسته کوونکے ـ

**سینګاربدل** :- (سي+ن+ګا+ر+ب+د+ل) اراسته کېدل ـ په ښائسته جوړېدل ـ

**سیګاوڼ** :- (سي+ن+ګا+ؤ+ن+ړ) (۱) د کشتۍ یا د بېړۍ په سر کښې هغه تخته یا اله چې د کشتۍ یا بېړۍ مخه پرې سمولې شي ـ سکان ـ (۲) په کورټولي، وغېره کښې هم بني ادم ـ

**سینګته** :- (سي+ن+ګ+ت) (ق ـ اس ـ مو ـ ج ـ تے) یو قسم مرغۍ ده ـ شیشړ ـ شیخ دو ـ

**سېنګټې** :- (سي+ن+ګ+ټې) (رق) (اس ـ جم) زبرجد ـ چې عموماً شین رنګ لري ـ

**سینګړ** :- (سي+ن+ګ+ړ) (اس ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه) کانیزه زمکه ـ سنګلاخ ـ سینګر

**سینګړۍ** :- (سي+ن+ګ+ړ+ۍ) (اس ـ مو) د بارودو کڅوړه ـ بارود داني ـ

**سینګکه** :- (سي+ن+ګ+ک) (اس ـ مو ـ ج ـ کے) یو وړه شان خړ رنګې مرغۍ ـ

**سینګڼ** :- (سي+ن+ګ+ن+ړ) (ق ـ اس ـ مذ) یخ باد ـ یخه هوا ـ

**سینګي**:- (سي+ن+ګ+ي)(اس ـ مو)سګلاهو ـ سنګ لاوو ـ

**سینما**:- (سي+ن+ما)(انګ ـ اس ـ مو ـ ج ـ ګانې) هغـه لـوے هـال ـ چـې پکښې متحرک تصویرونه(فلمونه) ښودلے کېږي بائیسکوپ ـ

**ـــ والا**:-(وا+لا/لَا)(انګ پ تر ـ اس مذ)د سینما یا د بائیسکوپ مالک ـ

**ـــ سپاره**:- (س+پا+ر)سفري سینما ـ

**سینمائي** :- (سي+نا+ما+ئ)(انګ پ تر ـ صف)د سینما سره تعلق لرونکے ـ د سینما متعلق ـ

**ـــ پرده**:-(پ+ر+دَ)(انګ پ تر ـ اس ـ مو ـ ج ـ دے)د سینما هغه لویه خاص سپینه پرده چې متحرک تصویرونه (فلم) پرېښودلے کېږي ـ پرده سیمین

**سینوس** :- (سي+نو+س)(اس ـ مذ) عقاب ـ یوه ښکاري مرغۍ ـ ګربته ـ

**سینوسے** :- (سي+نو+سے)(ق ـ اس ـ مذ ـ ج ـ سي)یوه ښکاري مرغۍ ده ـ چې همېشه جوړه وي ـ او یو ځاے ښکار کوي ـ میرګن ـ

**سینه** :- (سي+ن)(اس ـمو ـ ج ـ سینې)د بني ادم د وجود یوه حصه چې د مرۍ نه د لاندې او د ګېډې نه بره ـ د پوښتو د هډوکو د پاسه وي ـ ټټر ـ

**ـــ افګار**:- (ا+ف+ګا+ر)(وـــ سینه فګار)

**ـــ ایستل/یستل**:- (رق)(مص تر)کنایه: خوشحالي راتلل ـ خوش وقته کېدل ـ وښے وښے او ښتل ـ

**ـــ باز**:-(با+ز)(ف تر صف) هغه کس چې سینه یعنې زړهٔ ئې پرانستے وي ـ ارت زړے ـ لوے زړهٔ واله ـ

**ـــ بند**:-(بَ+ن+د)(ف تر ـ مذ ـ ج ـونه)(۱) د زنانؤ د تیونو د حفاظت د پاره خاص جوړه شوې جامه ـ انګیا ـ تي تړ ـ تي بند ـ (۲) د ټانګو ګاډو د اسونو او قچرو وغېره په سینه د تړلو پلنه پټه چې لاندې ترې ګدۍ لګېدلې وي ـ چې د ټانګې وغېره په راښکلو ئې سینه زخمي نهٔ شي ـ (۳) هغه کپړه وغېره چې د ماشوم په سینه زوړنده کړې شي ـ چې د لاندې نه ئې بره جامې بچ وي ـ لاړ ګیر ـ

**ـــ بین**:-(بي+ن)(ف تر ـ اس ـ مذ)هغه اله چې په سینه کښېښـودلې شي او د زړهٔ د راز پرې معلومولے شي ـ سټے سکوپ ـ (عوام ورته دور بین هم وائي ـ چې درست لفظ نهٔ دے) ـ

**ـــ پاره کېدل**:- سینه شلېدل ـ مجازاً ډېر زیات غم یا مصیبت او تکلیف زغمل ـ

**ـــ پراخول**:-سینه لویول ـ زړهٔ لویول ـ برداشت زیاتول ـ حوصله لویول ـ

**ـــ پوش**:- (پـو+ش)(ف تـر ـ اس ـ مـذ ـ ج ـونـه)د اس پـه سینه بانـدې د تړلـو لوګدۍ چې ټانګه وغېره راښکلو سره ئې سینه نهٔ زخمي کېږي ـ سینه بندي

**ـــ په سینه**:-(پ،سي+ن)(فپ تر ـ متف)(۱) داسې حالت ـ چې د یـو کـس سینه ښهٔ جوخته د بـل کس سینې سره لګېدې وي ـ (۲) یو روایت ـ خبره ـ د دارو نسخه چې په یو خاندان کښې د پلرونو نیکونو راسې پښت په پښت راروانه وي او چا بهرني کس تـه نـهٔ وي ښـودلې شـوې ـ پښت په پښت ـ

**ـــ په سینه رامنتقل کېدل**:-څهٔ خبرهې د مشرانو نه د هغوي اولاد ته زبـاني وئـیلے کېدل ـ په لیک کښې نهٔ راتلل ـ

**ـــ چاک**:- (چا+ک)(ف ـ تر ـ صف)(۱) هغه کس چې ښېپه ئې چاودلې وي ـ ډېر زیات غمجن ـ غمونو وهلے ـ زړهٔ چاؤدے ـ (۲) مجازاً عاشق ـ مئین ـ

**ـــ چاکول**:- زړهٔ چاؤدل ـ

**ـــ داغ**:- (دا+غ)(فپ تر ـ صف) (وـــ سینه سوخته)

**ـــ زن**:-(زَ+ن)(ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه)هغه کس چې خپلـه سینه پـه لاسـونو وهي سینه وهونکے ـ مجازاً ماتم کوونکے ـ غم او افسوس کوونکے ـ

**ـــ زني**:-(زَ+ني)(ف تر ـ اس ـ مو)سینه وهنه ـ ماتم کونه ـ

**ـــ زور**:-(زو+ر)(ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه)چې په سینه کښې ئې ډېر زور وي ـ سر کښې (اس) زورور ـ

**ـــ زوري**:- (زو+ري)(ف تر ـ اس ـمو)د سینې زور چلؤنه ـ سر کښې زوروري ـ

**ـــ سپر**:-(س+پِ+ر) (ف تـر ـصف)د سینې نـه ډال جـوړوونکے ـ مقـابلې تـه تیار ـ

**ـــ سپر کېدل**:-(مص تر)د سینې نه ډال جوړ کړے مېدان ته راوستل د مقابلې د پاره کلک او ټینګ اودرېدل مقابلې ته مخامخ کېدل ـ

**ـــ سر ېدل**:-زړهٔ یخېدل ـ

**ـــ سوخته**:-(سو+خ+ت)(ف تر ـ صف)سینه سوے ـ ډېر زیات غمونو وهلے ـ

**ـــ سوز**:- (سو+ز)(ف تر ـ صف ـ مذ ـ مو ـ ه)(وـــ سینه سوخته)

**ـــ سوے**:-(س+و+ے)(فپ ـ تر ـ صف)هغه چې سینه ئې د غمونو او مصیبتونو له تاوه سوځېدلے وي ـ (۱) (مجازاً) ډېر غمونو وهلے (۲) (مجازاً) عاشق ـ مئین ـ

یخې اوبهٔ نشته چې پرې تنده شي ماته
زهٔ به هسې ګرځم سینه سوې تر قیامته (خواجه محمد بنګش)

**ـــ فګار**:- (ف/فَ+ګا+ر) (ف تر ـصف ـ مذ ـ مو ـ ه) هغه چې سینه ئې زخمي شوې وي (۱) مجازاً ډېر زیات غمجن ـ غمونو مصیبتونو وهلے ـ (۲) مجازاً ـ عاشق ـ مئین ـ

**ـــ کاري**:- (کا+ري) (ف تر ـ اس ـ مو)د سینې زخمي کوُنه ـ ډېر سخت محنت او مشقت ـ

**ـــ کباب**:-(کَ+با+ب) (ف تـر ـ صف ـ مـذ ـ مـو ـ ه) هغه سړے چې سینه ئې سوځېدلې او کبـاب شـوې وي ـ سینه سوخته ـ سینه سـوے ـ ډېـر زیـات غمونو او مصیبتونو وهلے ـ

**ـــ کوبي**:- (کو+بي)(ف تر ـ اس ـ مو) سینه وهنه ـ سینه زني ـ ماتم کونه ـ

**ـــ مړل**:- افسوس ارمان کول ـ لاس مړل ـ

بیا سینه پسې په دواړه لاسه مړم
لکه باز د هونړاي ووځي له جاله (خوشحال)

**ـــ ورژلے**:- (وَ+ر+ج/ژ+لے)چې سینه ئې زخمي زخمي وي ـ مجازاً بې کچه ډېر غمجن ـ غمونو وهلے زېلے ـ

د کرم مرهم دې رب دربـاندې کېږدي
پـــه خنجـــر د جـدائۍ سینه ورژلیو (حافظ)

**ـــ وښکل/اوښکل/اباسل**:- (په تلو کښې) سینه زور سره مخکښې کول فخر کول ـ ناز کول ـ غرور کول ـ

**ـــ وښکلے**:- (و+خ/ش+ک+لے) (اس ـ مف ـ ج ـ لي)هغـه کـس چـې سینه ئې مخکښې وښکلے فخر کوونکے ـ فاخر ـ مغرور ـ غاوره ـ

**ـــ وښکلے ګرځېدل**:- پـه فخـر کښـې ګـرځـېـدل ـ پـه نـاز ګرځېـدل ـ غـرور کـول ـ غاوره ګرځېدل ـ

**ـــ وهل (چاته)**:- په سینه لاس وهل ـ پخه وعده کول ـ لوظ کول ـ ذمه اخستل ـ

**ـــ په سره**:-په ښهٔ سوچ فکر ـ بغېر د تادۍ غصې یا ګرمۍ نه

**ـــ په سره**:-غور کول ـ

**ـــ په سره**:-فکر کول ـ بغېر د تادۍ ـ غصې یا ګرمۍ نه په څهٔ خبره ښهٔ غـور او فکر کول ـ

**په سره ـــ کار کول**:- ډېر په سوچ ـ او قلاره کار کول ـ یا غصې یا تادۍ نه کار نهٔ اخستل

**په ـــ زور تېرول**:- په خپل ځان زور تېرول ـ برداشت کول ـ سخته خبره زغمل

**په ـــ کښې ځائیول**:- (مص تر)پـه زړهٔ کښـې ځـاے ورکـول ـ ډېـر زیـات قـدر

کول ۔
**په ـــ مئین دلول**:۔ د چا په مخکښې داسې کار کول ۔ چې د هغۀ پرې زړۀ خوږېږي
**سر ـــ وهل**:۔ افسوس کول ۔ پښېماني څرګندول ۔
**لاس په ـــ کښېښودل**:۔ په ادب اودرېدل ۔
**سینه باز** :- (سي+نَ+با+ز)(ق ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)یوه غرئیزه مرغۍ ده ۔ چې غوښه ئې ډېر خوندوره وي ۔
**سینې** :- (سي+نې)(اس ۔ ج)د سینه جمع ۔ ګڼې سینې ۔
**ـــ سره جوختول**:۔(سَ+رَ+جُ+خ+ت+ۆ+ل)(مص تر)سینې سره لګول ۔ تر غاړه باسل ۔ تر غاړه ۔
**ـــ سره لګول**:۔ (سَ+رَ+ل+ګ+ۆ+ل)(مص تر) تر غاړه ایستل ۔ تر غاړه کول ۔
**د ـــ ټوټه**:۔ د زړۀ ټوټه ۔ ډېر خوږ ۔ ډېر زړۀ ته نژدې ۔
**د ـــ پرده**:۔ (پ+ر+د)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ ے)هغه پرده چې د سینې اعضاء پکښې محفوظ وي ۔
**د ـــ پنجره**:۔(پ+ن+ج+رَ)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ ے)د پوښتو مجموعه ۔ چې پنجره شان ترې جوړه شوې ده او زړه ، پړپوس وغېره قیمتي اعضاء پکښې محفوظ وي
**د ـــ زوردې ډېر دے**:۔د زړۀ زور دې ډېر دے ۔ یعنې ډېره خواري مشقت او محنت درنه کېږي ۔ په څۀ کار ځان د ضرورت نه زیات ستړے کوې ۔
**د ـــ صندوق**:۔ (صَ+ن+دو+ق)(و ـــ د سینې پنجره)
**سېنیټ** :- (سې+ن+ټ)(انګ ۔ اس ۔ مذ)په یو حکومت کښې په لړ ممبرانو مشتمله قانون سازه اداره ۔ یا ټولے ۔
**سېنیټر** :-(س+ن+ټ+ر)(انګ ۔ اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ان)د سېنیټ رکن ۔ د مشرانو جرګې غړے ۔ د سنا ممبر ۔ د مشرانو د مجلس یو غړ ۔
**سېنټري** :- (سې+ن+ټر+ي) (انګ ۔ صف)د صحت متعلق ۔ د صحت د امورو سره تړلے ۔
**سېني خېل** :- (سې+ني+خېل)(اس ۔ مع)د نرمي خېلو څانګه ده ۔ چې (بکه خېل ، ولي خېل ، اتمان زے ، درویش خېل) وزیر دي ۔
**ـــ (ددغه)** :۔(اس ۔ مع)د تتر خېلو څانګه ده ۔ چې (خانخېل ، تختي خېل ، بکه خېل ، ولي خېل ،اتمان زے ، درویش) وزیر دي ۔
**ـــ (ددغه)** :۔(اس ۔ مع) د خدر خېلو څانګه ده ۔ چې (مهتر خېل ، محمد خېل ، حسن خېل ، مهمت خېل ، اتمان زے ، درویش) وزیر دي ۔
**ـــ (ددغه)** :۔(اس ۔ مع)د خلي خېلو څانګه ده ۔ چې (تائب خېل ، عمزوني ، ملي زاد) داوړ دي ۔
**سیني خېل** :- (سي+ني+خېل)(اس ۔ مع)د خونیه خېلو یوه څانګه ده چې (شادي خېل ، نصرالدین ، کالو خېل ، احمد زے ، درویش خېل) وزیر دي ۔
**ـــ (ددغه)** :۔(اس ۔ مع)د لازائیو یوه څانګه ده چې (لنډ ، ملخ ،ملي زاد) داوړ دي
**سینېزے** :- (سي+نې+ز+ے)(اس ۔ مع) د وینچي یوه څانګه ۔ سپین ترین دي (استوګنه:مبّي) ۔
**سینېګال** :-(س+نې+ګا+ل) (انګ ۔ اس ۔ موفه)د فرانسیسي حکومت ماتحت یوه جمهوریه مشهور ښار او دارالحکومت ئې ډاکر دے ۔ مسلمانان او عیسائیان پکښې اباد دي ۔ سکه ئې فرانک ده ۔
**سیو** :- (س+و)(اس ۔ مذ) نم لوندوالے ۔ رطوبت ۔

انتګـــي به را ښکاره که
زمـا اوښکې به کا وچې
دا په دا چې مدام تښتي
د ګـوپان پـه موسم سیر (علي خان)

**سېو** :- (سې+و)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ان) مېوه ۔ مشهوره مېوه ۔ سیب ۔
**سېواني کـور** :- (سې+وا+نې+کور) (اس ۔ مع)د خدي خېلو څانګه ده ۔ چې خوائیزي مهمند دي ۔
**سیوران** :- (س+یو+را+ن)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)چتر ۔ مینا ۔ سائبان ۔ (چې پخوا به د بادشاهانو په سر نیوے شو) ۔
**سېورغال** :- (سې+ۆ+ر+غا+ل)(اس ۔ مذ) انعام ۔ جاګیر ۔
**ـــ خوړل**:۔ انعام خوړل ۔ جاګیر خوړل ۔

دا همه زمـا د تـوري صدقـه شه
پښتانۀ چې پرګنې خوري سیورغال (خوشحال)

**سیورن** :-(س+یو+ر+ن)(صف ۔ مذ ۔ مو ۔ ه)(۱) هغه ابادي چې مخ ئې سهېل طرف ته وي ۔ سورلن ۔ مخ په سوري (۲) هغه څیز چې په سوري کښې اوچ کړے شوے وي (۳) سائبان ۔ چتر ۔
**سیورے** :-(س+یو+رے)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ي)(۱) سورے ۔ سایه (۲) حفاظت ۔ پناه ۔ حمایت
**ـــ په کاڼو ویشتل**:۔ د چانه ډېر زیات نفرت او کرمه کول ډېره سخت دښمني او مخالفت لرل ۔
**ـــ کېدل**:۔(۱) سورے کېدل ۔ په ماشوم باندې د کوم بد روح اثر کېدل ۔ او ددې اثر لاندې د ماشوم مانده کېدل او وچېدل(۲) اثر کېدل ۔ د چا د اثر لاندې راتلل ۔
**ـــ د سیوري لاندې راتلل**:۔ په حفاظت کښې راتلل ۔ (دچا) د چا په سر پرستۍ کښې راتلل ۔ د چا په حمایت کښې راتلل ۔
**ـــ د سیوري نه تښتېدل**:۔ ډېر زیات نفرت کول ۔ د چا نه د نفرت وغېره په وجه ، لرې اوسېدل ۔
**سیوسیو**:-(سي+و+سي+و)(ق ۔ اس ۔ مذ)د چرچڼي هومره یوه خړه مرغۍ ۔
**سیوک** :- (سي+و+ک)(اس ۔ مذ ۔ ج ۔ ونه)(۱) نیم سوے لرګے ۔ (۲) ماشوم چې وچمورے شوے وي ۔ او له دې کبله مانده او نرے شوې وي ۔
**سیوکس** :-(سِ+و+ک+س)(انګ ۔ جم)شهریت ۔ مدني علم ۔
**سېوکۍ** :-(سې+ۆ+ک+ۍ)(اس ۔ مو)(۱) د سیوک تصغیر دے ۔ نیم سوے لرګے ۔ (۲) د اور یوه وړه ټکره ۔
**ـــ پورې نیول**:- (مص تر)د اور ټوټه په چا پورې نیول کنایةً په چا باندې ډېره تادي کول ۔
**سېوکۍ**:-(سې+ۆ+ک+ۍ)(اس ۔ مو)یوه نرۍ دانه چې ډېر سوے کوي ۔
**ـــ ختل**:۔د سیوکۍ دانه یا دانې په چا راختل ۔
**سېول** :- (سې+ۆ+ل)(انګ ۔ صف)مدني ۔ ملکي ۔ (فوځي په مقابل کښې) ۔
**سـیول** :- (س+او+ل)(اس ۔ مع)د کـور یـا د ملک د مشهور ښار نوم چې دارالحکومت ئې هم دے
**سَیول** :- (سَ+يَ+ۆ+ل)(مص)زغمل ۔ برداشت کول ۔ صبر کول ۔ سهل ۔
**سېونګ** :-(سې+و+ن+ګ)(انګ ص) بچ کونه ۔ بچت ۔ (نورو الفاظو سره راځي) ۔
**ـــ اکاونټ**:۔(ا+کا+ۆ+ن+ټ)(انګ تر ۔ اس ۔ مذ)په سېنګ کښې د بچت څانګې حساب ۔ د بچت کاته ۔
**ـــ بېنک**:۔(بې+ن+ک)(انګ تر ۔ اس ۔مذ)هغه بېنک چې پکښې د بچت سېسې ټکې جمع کولے شي ۔
**سیوه** :- (سي+وَ)(اس ۔ مو ۔ ج ۔ وې)د هرېړې د بوټي ګل ۔
**سـیوهار** :-(سـي+و+ها+ر)(رق ۔ اس ۔ صوت)شـغهار ۔ د ګڼو غښـو د ویشـتلو

غونډي اواز ـ سنګهار ـ

**سیوی** :- (سي+وَ+ی)(اس ـ مع) په بلوچستان کښې یوه ضلع ده ـ اوس ورته عام طور سره سبي وائي ـ

**سیه** :- (س+يَ(ه)(ف ـ صف)د سیاه مخفف دے ـ (و ـــ سیاه)

**ـــ پېخال**:-(پې+خا+ل)د مارغانو یوه بیماري چې د غلو رنګ ئې تور شي

بد زحمت شي پـــه بازونو یو یو کـال
نوم ئې څۀ دے؟ په پارسي سیه پېخال (خوشحال)

**ـــ تاب**:-(تا+ب)(ف تر ـ صف) صېقل کړے او سپنې تور نقشي شان رنګ ـ چې د صېقل کولو نه وروستو ورته د غېبو په اوبو او دارو په تاؤ ورکولے شي ـ

**ـــ چال**:-(چا+ل)(ف تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)اصلاً دا لفظ سیه هغه ژور او تور تاریک کوهے ترې مراد دے چې پخوا به پکښې مجرمان د سزا په څېر ساتلے شول ـ

**ـــ سوز**:-(س+يَ+ه+سو+ز)(ق ـ اس ـ مذ)د ژمي بنوره چې توره شي ـ او په سپرلي کښې ئې زمکې له ورکوي ـ

**ـــ ګلیم**:-(ګ+لي+م)(ف تر ـ صف ـ مذ)تور کند ـ د فقیرانو تور رنګې کند یا شړۍ

**سیه** :- (س+يَ+ه)(اس ـ مو)د سیاهه مخفف دے ـ (و ـــ سیاهه)

**ـــ کول**:- سیاهه کول ـ نومونه لیکل ـ سرکاري حساب کتاب لیکل ـ یاداشتونه لیکل ـ

**سیهي** :- (س+يَ+هي)(اس ـ مو) سیاهي ـ هغه مرکب چې لیک پرې کولے شي د تور رنګ وي او که د بل رنګ ـ لکه شنه سهي ـ سره سهي ـ

**سیي** :- (س+یي) (اس ـ مو) سائي ـ بېعانه ـ

**سیدل** :- (سي+يي+دَ+ل) (مص)سهېدل ـ برداشت کېدل ـ زغمېدل ـ

**سییک** :- (سي+ي+ک)(اس ـ مذ ـ ج ـ ونه)د یو څناور نوم دے چې د مرېږ نه لږ لوے وي ـ

**سییک** :- (سي+يَ+ک)(اس ـ مذ)د ژمي (جمي) د موسم یو څو خاص ورځې

**سییکه**:- (س+يي+کَ)(اس ـ مو)هغه تېز باد (سیلۍ) چې د باران څاڅکي هم ورسره ملګري وي ـ

**سیین** :- (سي+ي+ن)(صف ـ مذ ـ ج ـ ه)تور ـ سنګړ ـ

**سییه** :- (سي+يَ)(ر صف ـ مو ـ ج ـ یيے)هغه هلک یا جینۍ چې مور ئې مړه وي ـ مور مړې ـ

**ـــ کېدل**:- (مص تر)د چا هلک یا جینۍ مور مړه کېدل ـ بې موره کېدل ـ

**سیي** :- (سي+يي)(ق ـ اس ـ مو)نښان ـ په داغ کښې حقظ شوي ـ پېژندلے ـ

**ـــ کول**:-(ق)په نغرو کښې حقظ کول ـ پېژندل ـ

**ـــ کېدل**:- حفظ کېدل ـ پېژندلے کېدل ـ

**سیبیسي** :- (سي+يَ+سي)

◈◈◈

# ش

**ش** :-(شـي+ن) د پښـتو د الفبـاء دوه ویشـتم تـورے دے د عربـي. دیارلسـم .د فارسي. شپاړسم او د اردو لسم حرف دے .د جمل (ابجد)په حساب کښي ددې توري قیمت درې سوه (۳۰۰) دے .په پښتو کښي دا تورے عموماً "س" سره او کلـه کلـه ځینـو نـورو اوازونـو سـره بـدلیږي .قبـائلي تلفـظ داختلاف له کبله د پښتو ځینو الفاظونو کښي ددې توري اواز د "خ" او یو بل خاص قسم اواز (چې د ژبې شاته په اړولو سره ادا کولے شي) سره ادا کولے شي .په دغه صورت کښي د "ش" په ځاے د پښتو خاص تورے "ښ" لیکلے شي.

ــــ :-(۱) تخفیف شمسي .یعني د شمسي کیلنډر کال (د هجري میلاد وغیره په مقابله کښي) .(۲) مخفف د شجاعت همراه یا شجاعت مند.

ــــ د پښتو پخواني لیکونو کښي د شهَ یا شهٔ په ځاے لیکلے شهٔ .و شهَ یا شهٔ.

**شا** :- (شا)(اس .مو ، ج .شاګاني/شاوے) (۱) د بني آدم د وجود هغه برخه چې د مرۍ نه واخله تر کناټو پورې وي .د سینې او ګېډې نه بل طرف ته. پُشت (اردو: پیٹھ). (۲) د ځناور د وجود هغه برخه چې عموماً د هغه د سینې او ګېډې نه بره طرف ته وي .(۳) هغه لورے کوم چې د بني ادم شا(پشت) طرف ته وي.

**پهـــــ اړول**:- مخ اړول مخ بل طرف ته کول.

**پهـــــ بېرته کتل**:- روستو کتل شاته کتل.

یاد که دیار نهٔ ئې تهٔ ئـې یاد لره حافظه
شا بېرته نهٔ ګورې سپا هي تېز که توسن لا (حافظ)

**ـــــ پرشنجے**:- (پ+ر+ش+ن+جے) (ق .صف)(۱) ستوني ستغ .داسې ملامته چې شا په زمکه (کټ وغیره) لګېدلې وي .(۲) برخلاف .مخالف.

**ـــــ پرشنجے کول**:- (۱) ستوني کول .(۲) برخلاف کول.

**ـــــ پرشنجے کېدل** :- (۱) ستوني ستغ کېدل .(۲) برخلاف کېدل.

**پهـــــ زمکه راوستل**:- (ر.ق)شا په زمکه لګول .په کشتۍ کښي راپرزول شا لګول .مغلوب کول.

**ـــــ په شا**:-(پَ.شا) (ظرف)(۱) موجودګۍ کښي .پس شا .پشي شا .(۲) یو بل ته شا کړے.

**ـــــ په شا تېرېدل**:- یو بل ته شا کړے تېرېدل .یو بل نه مخ اړول.

نهٔ پوښتنه سره شته نهٔ مخ کتنه
شا په شا سره تېرېږي اشنا خلق (حمید)

**ـــــ په شا کول**:- شاته کول .د نظره پنا کول .غېبول .بې تعلقه کول.

چې ئې ځان سره اشنا کړم له هر چائې شا په شا کړم
لـــه عـــالـــمـه بـېګانـه وم بـېګانـه یـم لاتـر اوسه (خوشحال)

**ـــــ په شا ګرځېدل**:- په شا ګرځېدل .مخامخ نه راتلل.

هسې پـه اولس بله نابله نازلـه اسمان شوه
ګرځي شا په شا ورکه دوستي مهرباني شوه (حافظ)

**ـــــ تړ**:- (ت+ړ) (صف ، مذ ، مو .ه) ملاتړ .مرسته کوونکے.

**ـــــ تورے**:- (تو+رے) (د سورلۍ هغه ځناور چې ځل ، زین .وغیره پرې نه وي اچولے شوے .چې شا ئې لڅه وي.

**ـــــ ته :**- (ـــــ تَ) (وروستو .شا طرف ته.

**ـــــ ته اچول**:- (۱) په شا اخیستل (۲) وروستو غورځول .هېرول.

**ـــــ ته اړتا وول**:- وروستو طرف ته غورځول .مجازاً هېرول .د توجه نه لرې کول

څـو ختم قـهر نـفساني اړتــاو نـــه کړې
پـه تند خصلت به وجاهت ابروۍ زیاته نه کړے (حافظ)

**ـــــ ته کول**:- (۱) وروستو کول (۲) کنایه هېرول .په هېره شمېرل .(۲) اغماض کول .درګزر کول.

**ـــــ ټپول (د چا)**:- کنایه چاله شاباسې ورکول .ستا ینه کول .د څه کار دپاره د چا همت زیاته ول .څه کار ته اماده کول .ټینګول .د چا پشتي کول ، حمایت کول .چا سره په څه کار کښي امداد کول.

**ـــــ قبله**:- (ق+ب+لَ) (اس .مو) د قبلې شا .د قبلې نه په بل طرف.

چا چې مـخ کـړله خــــالقه و مخــلوق تــه
شا قبلې تـه مونځ کوي مـخ پزه مشرق دي (حافظ)

**ـــــ کول :**- مخ بل خوا ګرځول .شا ګرځول.

چـې دلے ئې ورتـه شا هورے به مخ کا
دا هم لویه شرمندګي ده په محشر کښي (سعید خټک)

**ـــــ ګرځول**:-ګرځول (و----- شاګرځول)

**ـــــ ګرځ**:- ګرځ (ګَ+ر+ز) (امر) فوځي حکم دے .په شا د ګرځېدلو د پاره

**ـــــ ګرځول / ګرځول** :-(۱) مخ ګرځول .مخ اړول .چاته شا کول (۲) څه کار ته شا کول .په کوم کار کښي سستي کول .بیا کار نه کول لکه مانځه ته ئې شا ګرځولې ده.

**ـــــ لګول**:- (۱) په کُشتۍ کښي څوک راپرزول او په زمکه باندې د هغه شا لګول (چې د حریف شا په زمکه ولګي نو هغه کشتي بیلې شکست ورکول .ماتے ورکول .(۲) د ارام د پاره څملاستل .ارام کول.

**ـــــ لګېدل**:- (۱) په کُشتۍ کښي راپرزېدل او شا په زمکه لګېدل چې د کشتۍ د بېللو شرط دے .ماتے موندل .شکست .موندل .بېلل .(۲) په ملا کښي زخم پېدا کېدل د بارونو وړلو وغیره له کبله باري څاروي (لکه خر، اس) شا زخمي کېدل

**ـــــ ماتېدل**:- (ر.ق) ډېره سخته صدمه رسېدل یا لیدل ملا ماتېدل.

مارش!(ما+ر+ش) یو فوځي حکم دے.

**ـــــ نیول (بارته)** :-د بارېدلو د پاره ملا ټینګول .د بارېدلو د پاره امادګي څرګندول

غــافل شا نـــه نیسي و بــارته،نفس ښیرازه ساتي
په بار کشۍ کښي مې عارف شکسته ملا ولیده (حافظ)

**ـــــ وخوا**:-(و+خ+وا) (ظرف)(۱) وړاندې وروستو .هر طرف ته ، ګېر چاپېره (۲) پره .مرسته ، طرفداري .حمایت .(ظفر)

ـــــ **وخواکېدل**:۔ ګېر چاپېره کېدل۔ چاپېره ګرځېدل وړاندې وروستو کېدل۔ کنایه خدمت کول۔ په خدمت کښې حاضرېدل۔ نژدې نژدې لیدل۔

دلاسـي تـــــه مـــې یوسف تر شا وخوا کېږي
پـــــه بـازار چې ئې د حسن خریـدار شـــم (حافظ)

ـــــ **ورته کېدل**:۔ د څۀ کـار نـه شـا اړول۔ ورڅرمـه کـول: (وزیري، کـاکړ) شـاکـول۔ مخ اړول۔ په څۀ خبره سترګې پټول۔

ـــــ **ورکول (چاته)**:۔ شا اړمه ول۔ ټېک ورکول، د چا مرسته کول۔

ـــــ **پَ**:۔ (پَ+=) (ظرف) په شا باندې، د شا (پشت) د پاسه۔

**پهـــــ تلل**:۔ (۱) په وروستو تلل۔ وروستو طرف ته تلل (۲) کنایتاً تنزّل کول

**پهـــــ شا**:۔(پَ=شا) وروستو وروستو۔ په وروستو طرف۔

**پهـــــ خوړل**:۔ (وـــــ په شا لګېدل)

**پهـــــ شړل**:۔ وروستو کول۔ واپس شړل۔

**پهـــــ کول**:۔ (۱) وروستو کول۔ په وروستو ټېل وهل (۲) په شا سورول۔ چې نۀ ځي په شا به دې کړم چې نۀ خوري څۀ به دې کړم (متل)
(۳) بار وغېره په ملا اوچتول (۴) شاته اچول۔ هېرول۔

**پهـــــ کېدل**:۔(۱) وروستو کېدل۔ وروستو طرفته تلل (د فوځ) د خپل ځای وروستو ځای ته واپس تلل (۲) د چا په شا سورېدل۔

**پهـــــ ګرځول**:۔ (۱) په ملا باندې سور ګرځېدل (۲) کنایتـهً ډېر زیات خدمت کول (۳) کنایتهً ډېرې خوشامندې کول۔

**پهـــــ لګېدل**:۔ د توري ګزار په شا باندې خوړل یا ټوپک وغېره ګولۍ په شا لګېدل۔ (د توري ګزار یا د ټوپک ګولۍ هغه سړي په شا لګي څوک چې پـه تېښتـه وي ځکـه کنایتـهً پـه جنګ کښـې نـامردي ښـودل او د مېدان نه تښتېدل۔

ـــــ **وخوانه کېدل**:۔ (۱) نژدې نه راتلل۔ وړاندې وروستو نه لګېدل۔ (۲) پره یا مرسته نۀ کول۔ حمایت نۀ کول طرفداري نۀ کول۔ (ظفر)

ـــــ **ته**:۔ (تَ+ر+=) (۱) د شا (پشت) طرفته (۲) وروستو (۳) په شا په شا باندې۔

**ترـــــ آچول**:۔ (۱) شاته اچول۔ وروستو غورځول (۲) هېرول۔

واړه لاړ له دې جهانه
جهان واچـول تر شا! (خوشحال)

**ترـــــ کول**:۔ وروستو غورځول۔ هېرول۔

عاشقي بـه هـغـه کـاندې چې تر شا کا
زیست روزګار، شرم پېغور، ویره ننګونه (خوشحال)

**ترـــــ کېدل**:۔ (۱) وروستو کـېدل (۲) (د چا) د چا شا طرف تـه کـېدل۔ د چا نـه وروستو کـېدل (۳) د خپلې خبرې نه ګرځـېدل (۴) د مقابلې نـه وروستو کېدل

**دـــــ دلوري باد**:۔ (اس۔ مز ، ج۔ ونه)هغه باد چې د شا طرفه وي۔

**دـــــ قوت**:۔ (قُو+وَ+ت) (ب تر۔ اس۔ مذ ، ج۔ ونه) د ملاقوت۔

**دـــــ نه**:۔ د وروستو نه۔ د شا طرف نه۔

**مخـــــ کول**:۔ (۱) مخ ملاحظه کول۔ لحاظ کول۔ رعایت کول۔ (۲) معمولي شان پرده کول۔

ـــــ **(شا)**:۔ (سابقه) فارسي سابقه ده چې اصلاً "د شاه" مخففه ده او د "لوی" غټ معنٰی وروکوي۔ (مثالونه ئې وړاندې راغي) نور مرکبات ئې د شاه" تر لاندې وګورئ)۔

**شاب**:-(شا+ب) (اس۔ مذ ، ج۔ ونه) (۱) پیش قوضه۔ لويه چاړۀ۔ (۲) حربه۔ (ق)

ـــــ **شاب**:۔ (شا+ب) (ف۔ اس۔ مذ) پټکړي۔ خاورۍ۔

ـــــ **روسي**:۔ (رُو+سي) (اس جم) سپین مرچ۔

ـــــ **فرنګي**:۔ (فِ+رَ+ن+ګي) (اس جم) یورپینه خاورۍ۔ دا فرنګو پټکړے ایلم۔

ـــــ **شاب**:۔ (شا+ب) (ع۔ صف ، مو۔ ه) زلمے۔ ځوان۔

غلـولي د ے بُـــوډۍ ډېـر شـوهران دي
ته پرې خوبښ لکه په ښه ناوې شا بهٔ ئي (حافظ)

**شابه دین خېل** :- (شا+با+دي+ن+خېل) (اس مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم چې د پلالي څانګه ده او پلالي ، تاپیائي ، تپي دوړ دي۔

**شاباز** :- (شا+با+ز) (اس۔ مذ ، ج۔ ان) (۱) د شاه باز یا شهباز مخفف دے۔ لوے باز مشهور ښکاري مارغۀ دے (۲) د نارینهٔ په نوم کښې هم راځي۔

ـــــ:- (شا+با+ز) (اس۔ مذ ، ج۔ ونه) مضراب۔ درباب یا د تنبل وغېره سا د غړولو تېلے چې په ګوتو کښې نیولے یا ګوتې پورې تړلے شي۔

**شاباز خېل (۱)** :- (شا+با+ز+خېل) د پښتنو یوه قبیله ده چې د ایدر خېلو یوه وړه څانګه ده او ایدر خیل ، محمد خېل ، ملخ ، ملي زاد دوړ دي۔

(۲) :۔ (شا+با+ز+خېل) (اس مع)د پښتنو یوه قبیله ده چې د سر مست خېلو څانګه ده او سرمست خېل ، بډي خېل ، دردوني ، ووزي خېل ، مهمت خېل ، اتمان زے ، درویش خېل وزیر دي۔

(۳) :۔ (شا+با+ز+خېل) (اس۔ مع)د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې د خرچ خېلو څانګه ده او خرچ خېل ، خواجه خېل ، میاممي ، کابل خېل ، ولي خیل ، اتمان خېل ، درویش خېل وزیر دي۔

**شابازی**:- (شا+با+زَ+ی) (اس۔ مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د بارکزیو څانګه ده او بارکزیُ تر غړۀ کاکړ دي۔

**شاباسي** :۔ (شا+با+سي) (اس۔ مذ ، ج۔ سي) د افرین کلمه وئیل۔ تعریف کوونه؛ شاباس یا شاباش وئیل۔

ـــــ **اخیستل**:۔ په څۀ زورور کار یا کارنامه وغېره د خلقو نه د صفت او تعریف الفاظ اورېدل داسې کار کول چې لیدونکي اورېدونکي پرې شاباسې یا افرین ووائي کار خپل وکړه شاباسې (شابسې) د کلي واخله۔ (متل)

ـــــ **ورکول**:۔ افرین وئیل۔ شاباس وئیل۔ د چا په کار نامه د هغه تعریف کول۔

**شاباش**:-(شا+با+ش) (د تحسین کلمه) د تعریف او ستائینې په موقع وئیلے شي افرین لوے شې؛ مرګے دې نۀ وے ! وغېره (دا کلمه پـه اصل کښې "شاباش" وه چې د تعریف او ستائینې جمله ده۔ ډېر استعمال سره "شاباش" ترې جوړ شو)۔

ـــــ **شاباش**:۔ (کلمه تحسین) افرین۔ شاباس۔ د تعریف او د تحسین په موقع وئیلے شي عموماً ئې دوه ځله (تکرار) کولے شي خو کله کله ډېر ځله هم کولے شي لکه:

هم مې مشک لیدلي هم عنبر په جهان کښې
شاباش شاباش شاباش ستا په زلفو په کا کل (رحمان بابا)

ـــــ **کول**:۔ شاباسې وئیل۔ افرین وئیل۔ تعریف او ستائینه کول۔
د خوشحال خټک په پوهه کړه شاباش!۔

ـــــ **وئیل**:۔ د چا تعریف کول۔ د شاباش لفظ وئیل۔ افرین وئیل۔

نـادان بـه عـېب ښـت پـه ما کا
شاباش به وائي چې ئې توان لولي (سعید خټک)

**شاباشي غاره**:-(ش+با+شي+غا+ړَ) [ق۔ اس۔ مؤ] هغه ګرېوان چې په اوږه باندې وي

**شابسې** :- (شا+بَ+سې) د شاباسې مخفف دے۔ (وـــــ شاباسې)

**شابسي** :-(شا+بَ+سي) (د تحسین کلمه) افرین ورکول۔ واه۔ واه۔

ـــــ**ورکول**:- افرین ورکول۔ تعریف کول۔

**شابش** :-(شا+بَ+ش)(کلمه تحسین) (د شاباش مخفف دے) د تحسین او د تعریف کلمه ده۔

ـــــ **شابش**: (شا+بَ+ش) (کلمه تحسين) د تعريف او د تحسين کلمه ده.

افرين! شاباس شاباس!.

لا سيده نـﮥ وي پخلا چې مرور شي
شابش شابش عدل همره او زور همره (حميد)

**شابښي**:-(شا+بَ+ښي) (وـــ شابسې)

**شاب الدين خېل**: (شا+بُ+د+دي+ن+خېل) (اس-مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د کړائيو څانګه ده او کرّاري، شمي خېل، پلي خېل، منزئ، علي زئ محسود دي.

**شابښ**:-(شا+بَ+خ/ش) (د تحسين کلمه) په ځينو پخواني ليکونو کښې همداسې ليکلے شوے دے خو ددې لفظ املاء درسته نـﮥ ده. صحيح املا شابش دے. (وـــ شابش)

**شابک خېل**:-(شا+ب+ک+خېل) (اس-مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د خرمچ خېلو څانګه ده او خرمچ خېل، کمالي، شنګي، بهلول زئ محسود دي. (بله شجره کښې د شابک خېلو نوم شابيا خېل ليکلے دے او خرمچ خېل او د شنګي په مېنځ کښې د مالي نوم نشته.

**شابوټے**:-(شا+بُو+ټے) (صف) کبړے. شابوکے.

**شابوزې**:-(شا+بو+زَ+ې) (اس-مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې شابوزي. مرمه خېل، عربي خېل، سنځرخېل کاکړ دي.

(۲)**ددغه**: (اس-مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د دومړ و څانګه ده او دومړ، سنځرخېل کاکړ دي (بله شجره کښې د دومړ نوم نشته او ديو شابوزئ نوم داسې راغلے دے: شابوزئ غورزې، علي زئ، سنځرخېل)

**شابوشې**:-(شا+بُو+شَ+ې) (اس-مو) د يو بوټي نوم چې زيړ رنګې او خوشبويه دے.

**شابوکے**:-(شا+بو+کے) (صف) کبړے. شابوټے.

**شابيا خېل**:-(شا+ب+يا+خېل) (اس-مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د خرمچ خېلو يوه څانګه ده چې خرمچ خيلو، شنګي، سبعول زي محسود دي.

ـــــ: (شا+ب+يا+خېل) (اس-مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د تارون څانګه ده او تارون، ممدي، شينګي، بهلول زئ محسود دي.

**شالي خېل**:-(اس-مع) د ډوډې په جنګ کښې برخه اخستونکے يو خېل.

**شابي خېل**:-(شا+بي+خېل) (اس-مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د منظر خېلو څانګه ده او منظر خېل، عزيز خېل، نظر خېل، اېمل خېل، بهلول زي محسود دي.

ـــــ (اس-مع) د خټکو يوه قبيله چې د ډوډوې په جنګ کښې شريکه شوې وي

شابي خېل مکوړي وو په اولجه شول
د خـــور مـــو تـنبي نـــه ومـــي خـــرام (خوشحال)

**شابي زئ**:-(شا+بي+زَ+ئ) (اس-مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د عيسيازئيو څانګه ده او عيسيازئ، احمد خېل، اوباخېل شېراني دي.

**شابېل**:-(شا+بې+ل) (اس-مذ، ج-ونه) (۱) غشے-تير. (۲) د غشي تبره څوکه توبرے.

دا سـق زړۀ ئې سورے په لوے شا بيل کړ
کـتـه بـاز نـجيـب ئې والوت له منګلے (حافظ)

**شاپ**:-(شا+پ) (انګ-اس-مذ) (۱) دوکان چې سودا پکښې خرڅولے شي. (۲) د کار ځاے. ورﻩ کارخانه.

ـــــ **کيپر**:-(کي+پ+ر) (اس-مذ-ج-ان، مو، ه) دکاندار په دکان کښې مال خرڅوونکے.

ـــــ **ورک**:- (وَ+ر+ک) (انګ-اس-مذ) هغه دکان يا ځاے چې چېرته کار کېږي د څۀ کار د مشق ځاے. ورﻩ کارخانه.

ـــــ: (شا+پ) (اس-مذ-ج-ونه) (۱) شافه. په دوائي لړلې باتۍ چې په کُونه کښې داخله ولے شي. (۲) حربه. (ق)

ـــــ **ورکول**:- د ماشوم په کُونه کښې د شافې په ذريعه غوړ داخلول. د شافې په ذريعه د ماشوم قبض ماتول.

**شاپړنګه**:-(شا+پ+ړَ+ن+ګَ) (اس-مو)يو ځنګلي غړئيز بوټے دے. شاپيانګه

**شاپنګ**:-(شا+پ+ن+ګ) (انګ-اس)خريداري کول. بازار کښې سود سودا کول. په بازار کښې څيزونه په بيعه اخستل.

ـــــ **کول**:- بازار کښې سود سودا کول. ضروريات په بيعه اخيستل.

**شاپور**:-(شا+پو+ر) [اس مع] (وـــ شاهپور)

**شاپيانګه**: (شا+پ+يا+ن+ګَ) (اس مو) (۱) يو ځنګلي غړئيز بوټے دے چې لرګے او پاڼې ئې خړې شان وي. خشاک ئې بلولے شي (ښاپيانګه، ښميزوره/خاميزوره). (۲) پنير مايه. يو پيو واله بوټے دے چې زيړ ګل کوي او پي ئې د پنير مايه په طور استعمالېږي شدوئي. شودۀ پوئي. (ق، اق)

**شاپېټے**:- (شا+پې+ټے)(اس-مذ، ج، ټي) (۱) صدف. سيُ. ګوجے. د کارغۀ پوسکۍ. (۲) د شاپېټے. پشتاره. ګاټلي.

**شا پين پينګو**:-(شا+پي+نَ+کو) (اس-مع) د ماشومانو د يوې لوبې نوم.

**شات**:-(شا+ت) (اس جم) ګبين. شهد. (د شهد بدل نوم دے)

**شاتر**:-(شا+تَ+ر) (اس-مذ، ج-ان) (۱) سائيس. (۲) هر کاره.

**شاتره**:- (شا+تَ+رَ) (اس-مو) مشهور دارو. پاپړه.

**شاتماغه**:- (شا+ت+ما+غَ) (اس-مو-ج-غے) د ناز ادا نه ډکه ښځه. کيځ مکيځ کوونکې ښځه.

**شاتني**:- (شا+ت+ني) (اس-مذ، ني، مو-نۍ) وروستينے څوک چې دې شاته وي.

**شاتو**:- (شا+تو) (اس-مو، ج-ګانې) کم عقله ښځه.

**شاتوت**:- (شا+تُو+ت) (اس-مذ، ج-ان) مشهوره مېوه. هغه توت چې اوږد وي (د شاتوت مخفف دے).

**شاتوري**:-(شا+تو+ري) د "شاتورے" اضافي يو مجروري شکل دے لکه د شا توري اس سورلي.

ـــــ **خوړل**:- په شاه توري سورلي کول. کُوس ته ګوره چې شاتوري خوري (متل)

په ـــــ **سورلي کول**:- په شاتوري ځاروي سورېدل. په داسې ځناور سورلي کول چې ځل زين وغېره پرې نـﮥ وي.

ـــــ: (شا+تو+ري) (اس-مو) تور. تهمت. تومت.

ـــــ **کول**:- تورے پورې کول. الزام لګول، تهمت لګول.

**شاټ**:- (شا+ټ) (انګ-اس-مذ، ج-ونه) (۱) ګزار. ضرب ويشته. ډزکوونه. (۲) د ټوپک ډز. ټک (۳) په فلم سازۍ کښې کوم فلم چې په يو ګزار يعني يو ځلې واخستے شي.

ـــــ **ګن**: (ګَ+ن)(اس-مذ، ج-ونه) د سنګار ټوپک چې ۱۲ بور کالتوس په کښې چلېږي. چرئيز ټوپک.

ـــــ: (شا+ټ) (اس-مذ، ج-ونه)د بجلۍ جټکه. ټکان. ديکه (اصلاً د انګريزي"شاک" دے. شاټ ئې وران شکل دے).

**شاټوغتوب**:- (ش+ټُو+غ+تو+ب) (اس-مذ) کبړي توب. په ملا د کُب حالت شاټوغوالے شابوټ توب.

**شاټوغوالے**:- (حا+ټُو+غ+وا+لے) (اس-مذ، ج-لي) شاټوغتوب. شابوټولے.

**شاتوغے :-** (شا+تو+غے) [اس مؤ ، ج ـ غي] کبړاتوب ـ شابوټوالے ـ

**شاټېټے :-** (شا+ټې+ټے) [اس ـ مذ] (وـــــ شاتوغے)

**شاټېنګه :-** (شا+ټې+ن+ګه) (اس ـ مو ـ ج ـ ګې) د چرګانو مرغو معده چې په کښې خوراک جمع کوي او هضموي ـ سنګدان ـ

**شاټېنګي :-** (شا+ټې+ن+ګي) (شا+ټې+ن+ګي) (ب تر ـ اس ـ مذ ، ج ـ ګي) شاکلکونه ـ ملا کلکونه ـ حمایت ـ مرسته ـ

**شاټېنګي :-** (شا+ټې+ن+ګي) (اس ـ مو) د شا ملا ټېنګونه ـ حمایت ـ مرسته ـ طرفداري ـ پشېباني ـ

**ـــــ کول (د چا) :-** چا ملا ټېنګول ـ د چا پشتي جوړېدل ـ حمایت کول ـ مرسته کول ـ

**شائځه :-** (شا+(د) زَ) (اس ـ مو ، ج ـ ځې) خازه ـ ښَځَه ـ د کاڼي تخته چې عموماً په قبرونو د نخښې په طور ودرولے شي ـ

**شاخ :-** (شا+خ) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) (۱) ښاخ ـ څانګه ـ (د ونې) ـ (۲) ښکر ـ (۳) د اوبو وله یا نالی ـ وړوکے نهر چې د بل لوے نهر یا سیند نه را ببل کړے شوے وي ـ (۴) د قیمص د ترخ دري ګوټېزه کپړه تریز ـ (۵) د کومې محکمې اداري وغېره شعبه ـ څانګه ـ (۶) ډنډر ـ ناړ ـ

**ـــــ آهو :-** (آ+هو) (۱) د هوسۍ ښکر څۀ عجیبه خبره ـ (۲) کنایه لیندہ ـ کمان ـ (۳) د دروغو وعده ـ هغه غرض چې حاصلېدے نۀ شي ـ د فارسۍ متل دے ـ برات بر شاخ آهو ! ـ

**ـــــ تراشي :-** د ونې فالتو ښاخونه او څانګې پرې کول ـ تراشي کول ـ د ونې یا د ونو فالتو څانګې پرې کول ـ

**ـــــ دار :-** (دا+ر) (صف ـ مذ ، مو ـ ه) ښاخونه واله ـ هغه څیز چې مختلفې څانګې لري ـ څانګور ـ څانګن ـ

**ـــــ درشاخ :-** (دَ+ر+شا+خ) په یو ښاخ کښې نور ښاخونه او په هغو کښې نور ښاخونه ـ څانګې درڅانګې ـ

**ـــــ زعفران :** (زَ+ع+فَ+را+ن) (ف تر ـ اس ـ مذ) د زعفران (یو خوشبوداره بوټے چې خوشبو داره زېړ ګلونه کوي) د بوټي څانګه چې ډېره قیمتي وي

آدم زاد دې د یــوې ونــې ښاخـــونـــه
چېرته ته شاخ د زعفران شوې نور شړشم (حیمد)

**ـــــ سار :-** (سا+ر) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) هغه ځاے (یا ونه) چې پکښې ډېر زیات ښاخونه وي ـ جنګړ ـ د ګور سوري ځاے ـ

**ـــــ سمن :-** (سَ+مَ+ن) (اس ـ مذ) کنایتہً د معشوقې قد ـ

**شاخچه :-** (شا+خ+چَ) (اس ـ مو ، ج ـ چې) وړوکے ښاخ ـ څانګه ـ

**ـــــ بندي :-** (بَ+ن+دي) (اس ـ مو) په بوټي کښې د بل نرۍ څانګه پیوندول ـ پیوند لګول ـ

**شاخسانه :-** (شا+خ+سا+ن) (ف اس ـ مو ، ج ـ نے) مرکب لفظ دے شاخ +شانه یعنې ښکر او د اوږې هډوکے ـــــ) ـ (۱) تکرار ـ جګړه ـ تنازعه ـ (۲) الزام لګوونه ـ تهمت لګوونه ـ اعتراض کوونه ـ (۳) فریب ـ مکر ـ دوکه ـ

**شاخص :-** (شا+خ+س) (ع ـ فا ـ ج ـ ان) تشخیص کوونکے ـ

**شاخک :-** (شا+خ+ک) (اس ـ مذ ، مو ـ ه) وړوکے ښاخ ـ څانګه ـ شاخچه

**شاخل :-** (شا+خَ+ل) [ق ـ اس ـ مذ] (وـــــ شاخول)

**شاخوړے :-** (شا+خُو+ګے/ړے) (اس ـ مذ ، ج ړي) (۱) هغه څناور چې ملا ئې زخمي وي ـ عموماً بار برداره څناور چې د بارونو له کبله ئې ملا زخمي شوې وي ـ (۲) (باز) کونې ـ

**ـــــ کول :-** د باري څناور د بارونو په وجه شا زخمي کول ـ

خــر اراستــه پــه سَــر سرغ پــه راتــب ساتــۀ شي
کتے شا خوړے تازي اس که ،شهسوار پاتې له شه (حافظ)

**شاخول :-** (شا+خُو+ل) (ف اس جم) یو قسم غله ده ـ شاخِل ـ ارهر ـ د څارویو خوراک دے ـ

**شاخونه :-** (شا+خُو+نَ) [اس ـ مذ] د شاخ جمع ده ـ

**ـــــ ایستل ،** ویستل /اُوباَسل :- نوي ښاخونه یا څانګې ایستل ـ په ونه کښې نوې څانګې راپیدا کېدل ـ

**ـــــ خوروَل :-** (۱) د اونې ښاخونه او څانګې یو خوا بل خوا ور اوړدول ـ ګوربدل ـ (۲) د کومې اداري وغېره نوې دفترونه یا څانګې په نوؤ ځایونو کښې قائیمه ول ـ

**ـــــ قائیمه ول :-** د کومې اداري وغېره نوې څانګې قائیمول ـ د اداري وغېره څانګې نوؤ ځایونو ته خوروَل ـ

**شاخه :-** (شا+خَ) (لاحقه (۱) ښاخې ـ دا لاحقه ده ـ د نورو الفاظو نه وروستو راوستے شي لکه پنج شاخه ـ پینځه ښاخي ـ (۲) ښاخ ـ څانګه ـ

**شاخي :-** (شا+خي) (ف ـ اس ـ مو) ښــاخــۍ ـ دري خاښــې چــې وابــه پــرې الوځوي (بادوي) ـ

**شاخېل :-** (شا+خې+ل) (اس ـ مذ ، ج ـ ان ، مو ـ ه) (۱) په پښتنو کښې یو ادنیٰ او کمین قوم چې مختلف قسمه کمین خدمت به ئې کاوۀ ـ لکه ځاے جارو کول د حجرې وغېره صفای کول (۲) ځاے جارو کوُونکے ـ جارو کښ ـ (۳) ډم ـ تنبل جوړوونکے ـ (دا لفظ د شاه خېل یا د شاهي خېل مخفف ګڼلے شي) ـ

**ـــــ :-** (شا+خې+ل) [ق ـ مذ] هغه خلق چې د وادۀ زلمي سره د ناوې کورته راځي ـ

**شاد :-** (شا+د) (ف ـ صف مذ ، مو ـ ه) ښاد ـ خوشحاله ـ

**ـــــ باش :-** (با+ش) (کلمه د تحسین) د شابسي جمله ده ـ خوشحاله اوسې ـ شابسې 'شاباش' ! ـ (شاباش ، شاباش ددې جملې لنډیز دے) ـ

**ـــــ کام :-** (کا+م) (ف تر صف ـ مذ ، مو ـ ه) خوشحاله ـ چې مقصد ئې حاصل شوے وي ـ بامراده ـ کامیاب ـ

**ـــــ کامي :-** (کا+مي) (ف تر ـ اس مو) د کامیابۍ خوشحالۍ ـ کامیابي ـ مراد موندنه ـ مراد مندي ـ

**ـــــ مان :-** (ما+ن) (ف تر ـ صف ، مذ ، مو ـ ه) خوشحاله ـ خوښ وخرم ـ

**ـــــ ماني :-** (ما+ني) (ف تر ـ اس ـ مو) خوشحالي ـ خوښ او خرّمي ـ

**ـــــ مند :-** (مَ+ن+د) خوشحاله ـ ښاد مند ـ

**شاداب :-** (شا+دا+ب) (ف ـ سف ، مذ ، مو ـ ه) (۱) په اوبو ښاد ـ په اوبو موړ ـ په اوبو ښۀ خړوب شوے ـ (۲) تر و تازه ـ شین او غوړ ـ

**شادابي :-** (شا+دا+بي) (ف ـ اس ـ مو) (۱) په اوبو موړوالے ـ په اوبو ښه خړوبتیا ـ (۲) تر و تازګي (د زمکې ـ ونو ـ بوټو) ـ

**شادان :-** (شا+دا+ن) (ف ـ صف مذ ، مو ـ ه) (۱) ښادمن ـ خوشحاله خوش بخته ـ (۲) د مونث په شکل کښې (شادانه) د ځینو زنانۀ و په نوم کښې راځي ـ

**ـــــ کول :-** خوشحاله ول ـ ښادمن کوول ـ

له قمر مې مرّوت مدام بیا نۀ موند
عطارد پــه عطا نۀ کړمه شادانه (حافظ)

**شادانه :-** (شا+دا+نَ) [اس ـ مؤ ـ ج :نې] شاهدانه ،لویه دانه ، لویه مرغلره ـ

**شادت کور :-** (شـا+دَ+ت+کو+ر) (اس ـ مع) د مینه خېلو یوه څانګه ده چې خوئیزي مهمند دي ـ

**شادک خېل :-** (شا+د+ک+خېل) (اس ـ مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د بوباکیو څانګه ده او بوباکي ، تېپي زاد داوړ دي ـ

**شادکه :-** (شا+د+کَ) (اس مع) د پښتنو یوه قبیله چې د محمد خېلو څانګه ده او محمد خېل ، اسپرکا ، کالو خېل ، احمدزئ ، درویش وزیر دي ـ

**شادمان :-** (شا+د+ما+ن) (ف صف مذ ، مو ـ ه) خوشحاله ، ښادمند ـ خوش وخته

شادمان مدام په غرونو کښېوتل
مغموم همېش په ښاريو ښاد شول (سعيد ختک)

**شادو** :- (شا+دو) (اس ـ مو ، ج ـ گانې) بيزو ـ

**شادوله** :- (شا+دُو+لَ) [اس ـ مؤ] شاډوله ـ يو قسم لوبه گډا ـ اتڼ.

**شادئ** :- (شا+دَ+ئ) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د نصرى ځانگه ده او نصرى ، کالو خېل ، احمد زئ ، درويش خېل وزير دي ـ
(بيادشادئ ځانگې دا دي خوجل خېل ، بيزن خېل او پائنده خېل) ـ

**شادي** :- (شا+دي) (اس ـ مو) بيزو ـ شادو ـ

ـــــ :- (شا+دي) [اس ـ مؤ] ښادي ـ خوشحالي ـ

**ـــــ مرگ**:- (۱) چې د ډېرې خوشحالى نه مړ شي ـ (۲) هغه مرگ چې د ډېرې خوشحالى نه واقع شي ـ

**ـــــ ورل**:-خوشحالي موندل ـ خوشحالي نصيب کېدل لکه داسې خلق والله که شادي يوسي چې د خپلو ښۀ نۀ غواړي ـ

**د ـــــ زخم**:- (زَ+خ+م)

**د ـــــ پرهار**:- (پَ+ر+ها+ر)داسې زخم چې هيڅکله نۀ جوړېږي ـ (وائي چې يوه شادي زخمي (بيزو) زخمي شي نو نورې بيزوگانې د کتلو د پاره په کښې نوکونه وهي ـ ځکه دا زخم هيڅ کله نۀ جوړېږي) ـ کنايتاً هغه زخم يا پرهار چې نۀ جوړېږي ـ داسې قيصه يا لانجه چې سر ته نۀ رسي ـ

**شاديانه** :- (شا+د+يا+نَ) (ف تر ـ اس ـ مو ، ج ، نې) دخوشحالى سندرې ـ د خوشحالى ټنگ ټکور ـ

**شادياني** :- (شا+د+يا+ني) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د پالاؤ ځانگه ده ـ لوهاڼي دي

**شادي خېل** (۱):- ( شا+دي+خېل) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د بوبک ښاخ دے او بوبک ، دهانه ک بيټني دي ـ او بابکر او توخېل د شادي خېل ځانگې دي ـ

ـــــ (۲) :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د سکندر خېلو ځانگه ده او سکندر خېل ، منظر خېل ، ابراهيم خېل ، اتمان خېل ، درويش خېل وزير دي ـ

ـــــ (۳) :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د ايسوټو ځانگه ده او ايسوټ ، ميا خېل لوهاڼي دي ـ

ـــــ (۴) :- (ددغه) (اس مع) د پښتنود يوې قبيلې نوم چې د شليل خېلو ځانگه ده ـ شليل خيل ، بادنزئ ، برني ثمن خېل ، ثمن خېل محسود دي ـ

ـــــ (۵) :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د بوزاخېلو ځانگه ده او بوزاخېل ، تورخېل ، عمرزئ ، شين خيل ، احمدزئ ، درويش خيل وزير دي

ـــــ (۶) :- د پښتنو يوه قبيله ده چې د بوراخېلو ځانگه ده او بوراخېل ، مهمت خېل ، اتمان زئ ، درويش خېل وزير دي ـ (ايسپ خېل او بلي خېل د شادي خېلو ځانگې دي) ـ

ـــــ (۷) :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د نصردين ځانگه ده ـ او نصردين ، کالو خېل ، احمد زئ ، درويش خېل وزير دي ـ

ـــــ (۸) :-(اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د بلال خېلو ځانگه ده او بلال خېل ، حسن خېل ، مهمت خېل ، اتمان زئ ، درويش خېل وزير دي

ـــــ (۹) :-(ددغه) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د لرلورائي ځانگه ده او لرلورائي ، لنډ ، ملخ ، ملّي زاد داوړ دي ـ

ـــــ (۱۰) :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د ايپي يو ځانگه ده او ايپي ، حېدرخېل ، تپي زاد داوړ دي ـ

ـــــ (۱۱) :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله چې د باندډه ځانگه ده او باندډه ، تپي زاد داوړ دي ـ

**شادے زئ** :- (شا+دے+زَ+ئ) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د حمزه زئيو ځانگه ده او حمزه زئ ، ببل خېل ، موسىٰ خېل پني دي ـ

ـــــ :- (شا+دي+زَ+ئ) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د ناصرخېلو ځانگه ده او ناصر غلځي پاونده دي ـ

ـــــ :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د احمد خېلو ځانگه ده او احمد خېل تر غرۀ کاکړ دي ـ

ـــــ :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د ملک ياروځانگه ده ـ تور ترين دي ـ

**شادي زئ** :-(ددغه) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د کاريازئيو ځانگه ده ـ خجک پني دي ـ

ـــــ :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو قبيله ده ـ چې د خروټو ځانگه ده غلځئ دي ـ

ـــــ :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې ناصر ځانگه ده غلځئ دي ـ

ـــــ :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې بابړو ځانگه ده ـ

**شادي زئ کچون** :- (شا+دي+زَ+ئ+کَ+چُو+ن) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے ـ چې ماليزئيو ځانگه ده ـ مالي زئ ، رچکزئ ، ابدال ترين دي ـ

**شاډوک** :- (شا+ډو+ل) (صف ، مذ ، مو ـ ه) بد شکله سړے ـ ناگوړ ـ

**شاډوله** :- (شا+ډو+لَ) (اس ـ مو ، ج ـ لې) (۱) د هلکانو د يوې لوبې نوم.
(۲) يو قسم گډا چې په گډه کولے شي ـ

**ـــــ اچول**:- (۱) د شاډولے گډا کول ـ د زلمو په گډه دغه خاص قسم گډا کول ـ
(۲) د خوشحالى په موقع د شاډولے په شان تاوېدل راتاوېدل ـ د خوشحالى اظهار په گډا کښې کول ـ اتڼ اچول ـ

**ـــــ اچول**:-(و ـــــ شاډوله اچول ۲)

**شاډوله شـونډروه** :- (شا+ډَو+لَ+شُـو+ن+ډَ+ۉ+رَ) (ق ـ اس ـ مو ، ج شاډولې شونډورې) بې تهذيبه ـ سسته پسته او پوهړه ښځه ـ

**شاډينډک** :- (شا + ډي + ن + ډَ + ن + ک) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د ماشومانو د لوبو يوه تخته چې دواړو طرفونو ته ئې ماشومان کښېني او ښکته او پورته کېږي ـ غنجالے ـ دنگ ـ

**شاډينگه** :- (شا+ډي+ن+گَ) (اس ـ مو ، ج ـ گې) دنگ ـ بانبي چخ ـ شاډينډک ـ

**شاذ** :- (شا+ذ) (ع ـ صف مذ ، مو ـ ه) کم ـ کم کوز ـ نادر ـ د قاعدې خلاف ـ

**شاذو نادر** :- (شا+ذو+نا+د+ر) (ف تر ـ صف) ډېر کم ـ کله کله ـ کم کوز ـ

**شار** :- (شا+ر) [اس ـ مذ ـ ج :شارونه] ښاريا ښهر ـ

**شار** :- (شا+ر) (ق ـ اس ـ مذ ، ج ـ ان) يو قسم بوټے ـ چې د ډکو نه ئې جاروگان جوړېږي ـ د قندهار په خواو شاه کښې ډېر کېږي ـ

ـــــ :- (شا+ر) (لاحقه) لاحقه ده چې نورو الفاظو سره راځي او د شور معنىٰ ورکوي

**شاراواني** :- (شا+را+وا+ني)

**شروني** :- (شَ+ر+وَ+ني) د پښتنو د زرکون قبيله ده ـ گڼې ځانگې لري ـ

**شارب** :- (شا+ر+ب) (ع ـ اس نا ، مو ـ ه) ځښونکے ـ ځښکلو واله ـ نوش کوونکے ـ

**شاربل** :- (شا+ر+ب+ل) (مص) (۱) د کوچو د ويستو د پاره ماستۀ د منداڼو په ذريعه خوځول راخوځول ـ (۲) د ماستو شومبلې کول ـ

**ـــــ اوبۀ**:- (او+ب) عبث او بې فائدې کار کول (لکه څنگه چې د اوبو د شاربلو نه کوچ نۀ راووځي ـ خبره په خولۀ : خبره په خولۀ کښې اړول رااړول ـ شف شف کول ـ صفا خبره نۀ کول ـ

**خبره ـــــ**:- خبره اُړدول ـ د خبرې نه خبره ايستل ـ

**ـــــ تشې شومبلې**:- د شوملو نه کوچ وتے وي ـ ځکه زياتي شاربولو سره نور کوچ ترې نۀ ووځي ـ ځکه عبث او بې فائدې کار کول ـ

**شاربنه** :- (شا+ر+ب+نَ [حمص] (و---- شاربل)

**شاربوونکے** :- (شا+ر+بُو+ن+کے [فا ع - مذ - ج:شاروبُونکي - مؤ :شاربُوونکے] شومبلې کوونکے - خوځوونکے - حرکت ورکوونکے -

**شارټ** :- (شا+ر+ټ) یا (شا+ر+ټ)(انگ - صف) لنډ - ووړوکے - مختصر-

**---- ترم**:- (ت+ر+م) (انگ تر - اس - مذ) د ځۀ کار د پاره مقرره لنډه وقفه یا معیار

**---- کټ**:- (کَ+ټ) (انگ تر - مذ) (۱) لنډه لار - د عامې اوږدې لارې په ځاے داسې لار چې لنډه وي - (۲) د کوم خاص مقصد د حاصله ولو د پاره لنډه طریقه -

**---- هینډ**:- (هےَ+ن+ډ) (انگ تر - اس - مذ) (لفظي ووړوکے یا لنډ) د لیک یوه خاص لنډه طریقه چې پکښې د لویو الفاظو او جملو په ځاے د مختصرو علامتونو کار اخستے شي - مختصر نویسي - لنډ لیک -

---:- (شا+ر+ټ) [انگ - اس - مذ] (د جمعې په شکل کښې یعني شارټس)

**شارح** :- (شا+رِ+ح) (ع - اس فا - مذ ، ج - آن ، مو - ه) شرح کوونکے - وضاحت کوونکے - په وضاحت سره بیانوونکے -

**شارژدافیر**:- (شا+ر+ژ+دا+فې+ر) [فر پ - اس - مذ] سفارتي نائب - سفیر - قائم مقام

**شارع** :- (شا+رِ+ع) (ع - اس فا ع ، مو ، ج - ان ، مو - ه) (۱) شرع ښوونکے - د شریعت ښوونکے عالم په شرع پوهه - د شرعي پوهان - (۲) لویه لار - عام سړک - جاري لار

**---- اسلام**:- (ا+س+لا+م) (ع تر - مذ) د اسلام د شریعت راوړونکے - مراد ترې حضرت محمدصلعم دے -

**---- عام**:- (عا+م) (ع تر - مذ) د عامو خاصو خلقو د تلو راتلو لار یا سړک - هغه چلنده لار چې هر سړے پرې د تلو (یا د ټانګې موټر وغیره د چلولو) حق لري-

**شارق** :- (شا+رِ+ق) (ع - صف مذ ، مو - ه) روښانه - پړقېدونکے - روښانه غر - (نور)

**شارک** :- (شا+ر+ک) (انگ - اس - مذ ، ج - ونه) د لویو کبانو (مهیانو) یو خطرناک قسم دے چې هره بلاخوري او دښمن په ډېر سخت ګزار سره وژني (وجني) -

---:- (شا+رِ+ک) (ف - اس - مذ) د طوطي همره یو تور رنګ مارغۀ دے -

**شارکه** :- (شا+ر+کَ) (اس - مو ، ج - کې) ښاروني - ښارو - خارو -

**شارو** :- (شا+رو) (اس - مو ، ج - ګانې) مشهوره مرغۍ - ښارو - خارو - مېنا-

**شاربزے** :- (شا+رې+زَے) (اس - مذ ، ج - زي) د ښار نه ګرد چاپېره لوے دېوال شهر پناه - فصیل - کوټ -

**شاري ګر** :- (شا+رِي+ګ+ر) (اس - مذ ، ج - ان) هغه غزلخوان یا سندر غاړے چې په مجلس کښې غزلې بدلې وائي - سندرغاړے - مجلسي-

**شاړ** :- (شا+ړ) (ص - مذ ، مو - ه) (۱) غیر مهذب - بې ډبه - جاهل - شډل - (۲) د اباد ضد - غېر اباد - هغه پټے چې کرکرونده پکښې نۀ وي شوې -

شاره تل په کن پره ګرځي خوشحاله
مرنـۍ لیـندۍ بـه ځـي پـه سـر پره (خوشحال)

(۳) سُست او کاهل - (۴) بې مشقه - چې لا په کار کښې مشق ئې نۀ وي شوے

**---- پاړ**:- (پا+ړ) (ص - مذ ، مو :شاړه شپاړه - و-------شاړه شپاړه)

**---- توب**:- (تو+ب) (اس - مذ) شاړوالے - سستي - په کار کښې شډول والے -

**---- تیا**:- (ت+یا) (اس - مو) (۱) شاړوالے - شاړتوب - بې ډبه توب - شډل والے - بې سلیقي - (۲) د پټې شاړوالے - بې کرونده -

**---- شپاړ**:-(شَ+پا+ړ) (مص - مذ ، مو : شاړه پاړه) د "شپاړ" کلمه شاړ سره د تابع مهمل په طور راغلې ده او په معنٰی کښې ئې تاکید پیدا کوي - یعني ډېرخې شاړ - بالکل شاړ بې ډبه - شډل - بې سلیقې - د جټانو او ګوارانو په جامه او شکل صورت -

**---- شډل**:- (شَ+ډَ+ل) (و---- شاړشپاړ)

**---- کېدل**:- (مص تر) (۱) د کر کرونديې قابل نۀ پاتې کېدل - بنجر کېدل- (۲) ابادي کور وغېره د اوسېدلو قابل نۀ پاتې کېدل یا د اوسېدونکو نه خالي پاتې کېدل - (۳) د لاس مشق نۀ پاتې کېدل -

**---- والے**:- (و---- شاړتیا)

**شاړل** :- (شا+ړ+ل) (و---- شړل)

**شاړنه** :- (شا+ړ+نَ) (و---- شړنه)

**شاړلے** :- (شا+ړ+لے) (و-- شړلے)

**شاړول** :- (شا+ړَ+ؤ+ل) (مص) (۱) په زمکه کښې کر کرونده نۀ کول - ، غېر اباد کول - بنجر کول - (۲) په ابادۍ (کور وغېره) کښې استوږنه نۀ کول - د استوږنې قابل نۀ پرېښودل -

**شاړونکے** :- (شا+ړُو+ن+کے) (و---- شړونکے)

**شاړونه** :- (شا+ړَ+ؤ+نَ [حمص] شاړو کوونه - بنجرکوونه - غېر اباد کوونه -

**شاړوونکے** :- (شا+ړَ+وُ+ن+کے) (فا ع - مذ - ج: نکي - مؤ - نکې) شاړوونکے ، غېر اباد کوونکے - بنجرکوونکے -

**شاړه** :- (شا+ړَ) (اس - مو ، ج - ړے) (۱) د "اباده" ضد - غېر اباده - بنجره مېره - (۲) **هغه** کېږه چې ماهر لاسونو نۀ وي اودلې - شډله -

**شاړے** :- (شا+ړَے) (اس مذ ، ګوار - ړي) (۱) شډل - ګوار - جټ - (۲) سست او کاهل - (۳) هغه کس چې په نخښه ویشتلو کښې شاړ او بې تجربې وي (د نښانه باز ضد) -

ازمـښـت ګــوره د دهــر
راته سیندي شول اوس شاړې (خوشحال)

**شاړي** :- (شا+ړي) (اس - مو) اشاړي - مشهوره مېوه - زرد الو چې د هډوکي مغز ئې تریخ وي -

**شاړېدل** :- (شا+ړې+د+ل) (مص) (و---- شاړکېدل)

**شاړي واړي** :- (شا+ړي+وا+ړي) بې ډبه - غېر مهذبه - شډل - بې سلیقې سست پست - کاهل -

**---- کېدل**:- (۱) سست پست کېدل - بې نظمه کېدل - (۲) بې حاصله کېدل - بنجر کېدل-

**شاړي واړه** :- (شا+ړي+وا+ړي) (و---- شاړي واړي)

**شازه** :- (شا+زَ) (اس - مو ، ج - زې) (۱) د کاڼي هواره تخته (۲) **هغه** کاڼے چې د قبر سر او پښو ته لګولے شي - ښاځه - خازه - (۳) د قبر کتبه -

**شاږه** :- (شا+ګَ/ژَ) (اس - مو - ج - ې) غشے - تیر -

د قضا شاږه به ستا ځانګو نه مات کا
که تـه هـر ځـو پورته پورته په هوا ځې (انصاري)

**شاستر** :- (شا+س+ت+ر) (هـ - مذ ، ج - ونه) د قانون کتاب - د مذهب قاعدې او قوانین یا د مذهبي قوانینو او قاعدو کتاب -

**---- کول**:- (کو+ک) (هـ تر - اس - مذ کر ، ج - ونه) **هغه** کتاب چې پکښې جنسي خبرې او معلومات لیکلې دي - دا کتاب په هندۍ کښې اول ځل کوکا پنډت لیکلے وۀ -

**شاش**(۱) :- (شا+ش)

**شـاش**(۲) :- (شـا+شَ (ف - اس (۱) مزکـر ، (۲) مونـث) متیـازې - واړۀ بـول - موتیازې

**---- دان**: - (دا+ن) (ف تـر - اس - مـذ ، ج - ونـه) د موتیـازو لوښے - د وړو بولـو لوښے -

**ـــــ کول**:-(۱) متيازې کول- (۲) (په څۀ) د حقارت او کرکې د ښکندولو د پاره وئيلے شي-

پښتنائۀ د بدنيتئ د خُصومت دي

په حيا په شجاعت ئې وکړه شاش (خوشحال)

**شاطبي** :- (شا+طِ+بي) [ع-اس مع] عربي د يو ديني کتاب نوم دے-

لوے قاري اظهر صاحب د شاطبي وۀ

بد نصيب د هغه مرد نيک سيرت ږدي (حافظ)

**شاطر** :- (شا+طِ+ر) (ع-اِس فاع، ج-ان، مو-ه) (۱) چالاک-هوښيار-

(۲) شوخ-بيباک- (۳) د شطرنج لوبغاړے- د طرنج د لوبې ماهر-

(۴) قاصد-استاذے- (۵) ګنګپ-ګنډ کپ-غل-نوسرباز-

**شاعر** :- (شا+عِ+ر) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د لودهانيو ځانګه ده-پنې دي

ـــــ :- (شا+عِ+ر) (ع-اس فاع-مذ، ج-ان، مو-ه) (۱) شعور لرونکے- شعورمند-پوهېدونکے- (۲) شعر جوړوونکے-شعر ويونکے-

**شاعرانه** :- (شا+ع+را+نَ) (عف تر-ص) (۱) د شاعر په طريقه-د شعر ويونکي په انداز داسې بيان چې شعر سره تعلق لري- (۲) خيالي-تصوراتي-چې حقيقت نۀ لري- (۳) د مبالغې نه ډک-مبالغه امېز-

**ـــــ تخيل**:- (تَ+خَ+ی+يُ+ل) (۱) د شاعرانو په شان خيالونه-داسې خيالونه چې په عام ژوند کښې (جوند) کښې نۀ شي ليدے- محض تصورات وي-

(۲) د مبالغې نه ډک خيالات يا خبرې-

**شاعري** :- (شا+ع+رِي) (عف تر-مو) د شعر جوړولو يا د شعر وئيلو هنر يا کار- د شعر فن-

**ـــــ کول**:-(۱) د شعر د جوړولو کار کول-شعرونه وئيل- (۲) خبرې د شعور په شان په ښکلي او اثرناک انداز کښې کول- (۳) مبالغه امېزي کول- خيالي خبرې کول تصوراتي خبرې کول- (چې حقيقت سره تعلق نۀ لري)-

**شاغاسي** :-(شا+غا+سِي) (ت اس-مذ، ج-ان) د باچا د دربار منتظم- (ت: ايشک اقاشي)

**شاغاسي خېل** :- (شا+غا+سِي+خېل) [اِس مع] د يوې قبيلې نوم-شاغاسي خېل-

**شاغت** :- (شا+غُ+ت) [اس-مذ] (و---- شاغوت)

**شاغتول** :- (شا+غُ+تَ+ؤ+ل) [مص مت] (و------ شاغوتول)

**شاغتېدل** :-(شا+غُ+تي+دَ+ل) [مص لا] (و------ شاغوتېدل)

**شاغل** :- (شا+غ+ل) (ع-اِس فاع-مذ، ج-اَن، مو-ه) شغل کوونکے، په څۀ شغل کښې غرق-په څۀ کار کښې بوخت او مصروف-

**شاغوت** :- (شا+غو/غُ+ت) (اس-مذ، ج-ونه) (۱) په ګوتو اشارت کول- (۲) په ګوتو د چا کُونې يا د ښځې پټ اندام ته اشاره کول-

**ـــــ ورکول**:- (۱) ګوته د چا کُونې (يا د ښځې پټ اندام) ته ور وړل- (۲) څۀ بدې خبرې د پاره اماده کول-

**ـــــ په سترګو کښې شاغتونه ورکول**:-په سترګو کښې ګوتې منډل-بېغور ورکول په پېغورونو او طعنو شرمنده کول-

**شاغوتول** :- (شا+غو/غُ+تَ+ؤ+ل) (مص مت) (۱) شاغت کول-په ګوتو اشاره کول (۲) په ګوته د چا کوني (يا د ښځې پټ اندام) ته اشاره کول- (۳) پېغور ورکول-په پېغور شرمنده کول- (۴) بې عزتي کول-

**شاغوتونګ** :- (شا+غو/غُ+تَ+وَ+ن+ګ) [ق-حمص] (و---- شاغوتونه)

**شاغوتونه**:-(شا+غو/غُ+تَ+ؤ+نَ) (حمص) په ګوته د اشارت عمل-شاغت ورکوونه

**شاغوتوونکے** :- (شا+غو/غُ+تَ+وو+ُن+کے) (اس فا، ج-کي) (۱) شاغت ورکوونکے په ګوته اشارت کوونکے- (۲) د چا کُونې (يا د ښځې پټ اندام ته په ګوته اشارت کوونکے- (۳) پېغور ورکوونکے- (۴) څۀ بد کار دپاره اماده کوونکے

**شاغوتېدل** :- (شا+غو/غُ+تي+د+ل) (مص) (۱) چا ته په ګوته اشارت کېدل- (۲) د چا کُونې (يا د ښځې پټ اندام) ته په ګوته اشارت کېدل- (۳) د څۀ بد کار دپاره د (بل په اشارت) اماده کېدل- (۴) بې عزتي کېدل-

**شاغوتېدنګ** :- (شا+غو/غُ+تي+دَ+ن+ګ) (و ------ شوغوتېدنه)

**شاغوتېدنه** :- (شا+غو/غُ+تي+د+نَ) (حمص) ګوته ورکړے کېدنه-په ګوته کُونې ته اشارت کېدنه-بې عزتي کېدنه-

**شاغُوتی** :- (شا+غُو+تَ+ی) (ق-اس-مو) د يوې ځنګلي مرغۍ نوم دے-د کورنۍ چرګې په شان وي-يار مخچې-

**شاف** :- (شا+ف) (کلمه تاکيد) دا لفظ عموماً "لاف" سره راځي او په معنٰی کښې ئې زور او تاکيد پيدا کوي-

که اقرار په ناپوهۍ شوې، ښه ئې پوهه

چې د پوهې لاف و شاف کړې نه ئې پوهه (حميد)

**شافټ** :- (شا+ف+ټ) (انګ-اس-مذ) موټر وغېره مشينونو کښې يو اله-دسته لاسټې-ډنډه-تير-

**شافع** :- (شا+ف+ع) (ع-اس-فاع-مذ، ج-ان، مو-ه) شفاعت کوونکے (سفارښت) کوونکے-

**ـــــ روز جزا** (رو+ز+جَ+زا)

**ـــــ محشر**:- (مَ+ح+ش+ر)

**ـــــ يوم الحساب**:- (يوَ+م+ل+ح+سا+ب) ددې ټولو مرکباتو مراد حضرت محمدصلعم دے چې هغه به د قيامت په ورځ د خپل امت د ګنهګارو د بخښنې سوال کوي

**شافعي** :- (شا+ف+عِي) (اس مع) امام شافعي چې د اهل سنت يو امام وۀ-پوره نوم ئې محمد بن ادريس بن عباس بن شافع وۀ-ددۀ نيکۀ په نسبت ورته وائي-په ۲۰۴ هـ کښې وفات شوے-

**ـــــ مذهب**:- (مَ+ذ+هَ+ب) (اس مع) د امام شافعي پېروکار-د امام شافعي د فقې منونکي-

**شافعيّه** :- (شا+ف+عي+يَ) (اس-مع) د اهل سنت والجماعت په څلورو لويو ټولو کښې يو ټولے چې د امام شافعي په مذهب دي-د امام شافعي د پېروکارانو فرقه-

**شافه** :- (شا+فَ) (ف-اس، مو، ج-فې) (۱) هغه په يا باتۍ چې په دارو کښې لړلې شوې وي-په سترګو، يا زخم يا (د ماشوم) په کونه کښې کښېښودے شي- (۲) د صابون وړه شان اوږده ټکړه چې د قبض د ماتولو د پاره د مريض د لويو بولو په ځاے کښېږدي-

**شافي** :- (شا+في) (ع-صف) (۱) شفا وروکوونکے-صحت ورکوونکے-

(۲) تسکين-ارام-ورکوونکے-

**ـــــ کافي**:-(کا+في) په شفا او ارام يا د بل څۀ ضرورت د پاره ورکولو کښې بالکل کافي چې د نور څۀ ضرورت نۀ وي-

**شاق** :- (شا+ق) (۱) ناګوار-سخت (څيز يا کار وغېره) (۲) ګران-مشکل-

چې وودلې وي په ذات توره شَړې

سپينول ئې د هر چا وته دي شاق (خوشحال)

**شاقاسي** :- (شا+قا+سي) [ت-اس] (و ---- شاغاسي)

**شاقول** :- (شا+قُو+ل) (ق-اس-مَذ، ج-ونه) د معمارانو يو اله چې د دېوالونو وغېره نېغ والے پرې معلومېږي-د اوسپنې يا د بل کوم دهات يو ګوله

شان وي چې تار سره تړلی وي۔
**شاقه** :- (شا+ق+قَ) (ع۔صف۔مو) سخته۔ګرانه۔مشکله۔
**شاک** :- (شا+ک) (ع۔اس فاع۔مذ ، مو۔ه) شک کوونکے۔شک شبه لرونکي۔
نبي کړے مونځ په شاد درازګوش وۀ
شاک انګشت د علم دین په عبادت بړدي (حافظ)
ــــ:- (شا+ک) (انګ۔اس۔مذ ، ج۔ونه) (۱) صدمه۔دوک۔(۲) جټکه۔ټکان۔
ــــ **رسېدل**:- صدمه رسېدل۔دوک رسېدل۔
ــــ **ورکول**:- جټکه ورکول۔دیکه ورکول۔ټکان ورکول خصوصاً د بجلۍ جټکې ته وائي۔عوام ورته "شاټ" هم وائي۔
**شاکاخېل**:- (شا+کا+خېل) (اس مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې د سلیمکو یوه وړوکې څانګه ده او سلیمکي ، خلي خېل ، برني شمن خېل ، محسود دي۔
**شاکاسه** :- (شا+کا+سَ) [اس صف۔مؤ۔ج:سې] لویه کاسه۔لویه پیاله۔
**شاکر** :- (شا+کِ+ر) (ع۔اس فاع ، مذ ، ج۔ان ، مو۔ه) (۱) شکر کوونکے۔شکر ګزار۔(۲) د سړو په نومونو کښې هم استعمالېږي۔
ــــ **اوسېدل**:- شکر ګزار اوسېدل۔مننه کوونکے کېدل۔
په دا کم قوت شاکر اوسه حافظه
چې دې نشته دے قدرت په رشوت بېړې (حافظ)
ــــ **صابر او شاکر**:- (صا+بِ+ر+اَو+شا+کِ+ر) صبر کوونکے او شکر کوونکے۔(په مصیبت او سخته کښې) قانع او شکر ګزار۔
**شاکرک** :- (شا+ک+رَ+ک) (ق۔اس۔مذ)یو قسم بوټے دے۔دوه ډنډري کوي او خوند ئې خوږ وي۔
**شاکړوپ** :-(شا+ک+ړو+پ) (صف ، مذ ، مو۔ه) کبړے۔هغه کس چې ملا ئې کږه او بهر ته راوتې وي۔
**شاکړیتوب** :- (-+تو+ب) (اس۔نو) کبُرا توب۔
**شاکړوپوالے** :- (+وا+لے) [اس۔مذ] (و---- شاکړویتوب)
**شاکړوپے** :- (شا+ک+رُو+پے) [اس صف۔مذ۔ج:پي۔مو:شاکړوپه] کبړے سړے۔
**شاکلا** :- (شا+ک+لا) (کله انکار) (۱) هېڅ کله نا۔هر ګز نا۔(۲) هسئے توبه ! (ق) اصلاً دا کلمه د عربۍ د حاشا وکلّا ، نه جوړه شوې وه چې همدغه معنٰی لري
**شاکلنګ** :- (شا+کُ+لَ+ن+ګ) (اس۔مذ ، ج۔ان ، مو۔ه) لوے کلنګ۔د زانې یو قسم د عامو زانېو نه لوے وي۔ددې وړوکي قسم ته "کرکرې" وائي (ق)۔(کرکرې اصلاً د مرغابو یو قسم دے)۔
**شاکم** :- (شا+کَ+م) (اس۔مذ ، ج۔ونه) هغه نذر یا منښته یا خېرات چې د پال په دود ورکولے شي۔
د عمل قوت زما شمس الدین بر دے
نور به څۀ په دې نوبوده دنیا ویارم (کاکړ)
**شاکوپې** : (شا+کُو+پَ+ې) (صف۔مو) کبړې۔هغه ښځې چې په ملا ئې غټه موړه وي۔یا کُب وتے وي۔
**شاکوکې** :-(شا+کو+کَ+ې) (اس۔مو) د جینکو د یوې لوبې نوم۔
**شاکونډې** :- (شا+کُو+ن+ډَ+ې) (ق ، اس۔مو) د غرئیزې ناکې یو قسم دے۔چې ورکوټې او خوږ وي۔
**شاکي** :- (شا+کي) (ع۔اس۔مذ) شکایت کوونکے۔ګیله مانه کوونکے۔
ــــ **کول**:- په شک کښې اچول۔تشکیک اریک اچول۔
**شاګرد** :- (شا+ګ+ر+د)
**شاګرد** :- (شا+ګ+رِ+د) (ف ، پ ، مذ ، ج۔ان ، مو۔ه) طالب علم (چې د چا استاد یا عالم نه زده کړه کوي۔تلمیذ۔(اصلاً دا لفظ شاه ګرد وۀ۔یعني د بادشاه نه چاپېره ګرځېدونکے۔خدمتګار۔نوکر وروستو ئې شکل هم بدل شو او معنٰی ئې هم بدله شوه)۔
ــــ **رشید**:- (رَ+شي+د) (عف تر۔اس۔مذ) هغه شاګرد چې رُشد یعني هدایت ئې موندلے وي۔لائق شاګرد۔
**شاګردي** :- (شا+ګ+ر+دي)
**شاګردي** :-(شا+ګ+ر+دي) (ف۔اس۔مو) د کوم استاد شاګرد کېدل۔د چا نه زده کړه کوونه۔تلمّذ۔
ــــ **کول**:- د چا استاذ شوګرد کېدل۔د چا استاذ نه زده کړه کول۔
**شاګم** :- (شا+ګُو/+ګُ+م) (اس۔مذ ، مو۔ه) (۱) شګون۔پال۔فال۔شنګړ۔(شاکم)
(۲) ښهٔ فال۔نېک فال۔ښهٔ پال۔
**شاګوړې** :-(شا+ګو+ړَ+ې) (ق۔اس ، مو) (۱) د ټوکې هغه کپړه چې د قمیص شاته لګوله شي۔(۲) د خر د پالان دستکے۔
**شاګوړے** :-(شا+ګُو+ړے) (اس مذ ، ج۔ړي) د نمدے هغه ټکړه چې د اس یا اوښ وغېره پالان دواړو طرفونو ته کښېښودے شي چې څناور خوږ نۀ شي۔زېر پالان۔
**شاګۍ** :- (شا+ګ+ۍ) (اس مؤ) (۱) د غرلمنه۔(۲) غونډۍ۔پشته۔خټ۔(۳) مقبره
ــــ **کېدل**:- ملا تړ کېدل۔کومک کېدل۔
**شاګے** :- (شا+ګے) (رق ، اس۔مذ ، ج۔ګي) د مانګو په اصطلاح کښې هغه تخته چې د کشتۍ لاندینۍ تختې پرې اودرولے شي۔
ــــ:- (شا+ګے) (اس۔مذ) هغه ټوکے چې زنانه ئې د قمیص شاته ګنډي۔
**شال** :- (شا+ل) ف۔مذ ، ج۔ونه) وړین څادر۔د پشمینې نه جوړ څادر شړۍ۔
بادشاهان که زر زري جامې اغوندي
د قانع ګدا په شا باندې یو شال بس (خوشحال)
ــــ **باف**:- (با+ف) (ف تر۔اس مذ ، ج۔ان ، مو۔ه) د شال اودوونکے۔شالونه جوړوونکے۔
ــــ **باني**:-(با+ني) (ف تر۔اس۔مو) د شالونو د اودلو کار۔د شالونو جولاګري۔
ــــ **په سر اچول**:- عزت ورکول۔لوپټه ور په سرول۔
ــــ **په نشرۍ پیوندول**:- (و---- شال په شړۍ نۀ پیوندېږي)
ــــ **په شړۍ نه پیوندېږي**:- اعلٰی خاندان واله سره د ادنٰی خلقو دوستي نۀ جوړېږي۔
ــــ **دوز**:- (دو+ز) (ف تر۔اس۔مذ ، ج۔ان ، مو ، ه) هغه کس چې شالونه ګنډي مجاز اً په شالونو باندې د ریښمو وغېره انځورونه جوړوي۔
ــــ **شوے**:- (شو+ے) (اس۔مذ) د شالونو د وینځلو کار کوونکے۔
ــــ **وودل**:- شال جوړول۔شړۍ جوړول۔
د خبرو تنستې چې واو دلے شي
ښوک اطلس ووي په شعر ځنې شال (خوشحال)
د ــــ **لاندې بیوزے وهل**:- پټ په پټه امداد کول۔
ــــ **کشمیري**:- (کَ+ش+مي+ري) (پ تر۔اس۔مذ ، ج۔ونه) د کشمیر جوړ شوے شال۔کشمیري پټو چې ډېر قیمتي وي۔
ــــ:- (شا+ل) (اس مع۔مذ) د کوئټې یا کوټې پخوانې نوم۔
**شالامار**:- (شا+لا+ما+ر) (اس مع) د لاهور مشهور باغ او د سبل ځاے چې مغل باچا شاهجان جوړ کړے وۀ۔ (شاههان په دې نوم نور باغونه هم جوړ کړي وو چې یو پکښې په کشمیر کښې هم دے)۔
**شالکوټ** :-(شا+ل+کو+ټ) (اس مع۔مذ) د کوئټې (کوټې) پخوانې نوم اصلاً دا

نوم شال وۀ بیا وروستو چې د غلته قلا جوړه شوه نو شال سره کوټې (قلعه قلا) لفظ هم لګید - او شال کوټ شو -

**شالکے** :- (شا+لَ+کَے) (اس - مذ ، ج - کي) د شال تصغیر - وړوکے شال -

**شالم** :- (شا+ل+م) (اس مع) د "شاه عالم" مخفف شکل دے - د یو سیند نوم - چې د کابل د سین یوه څانګه ده - د پېښور په علاقه کښې بهېږي -

**شالیمې** :- (شا+ل+مَ+ی) (اس - مو) (۱) هغه چې زنانه د لستوڼي په دور کښې ګنډي - ګل مخې - (۲) د چکن دوزۍ یو قسم -

**ـــــ وټې** :- (وَ+ټَې) (ق - اس - مو) هغه غونډ قینچي شوي ټوکے چې زنانه د هغې ګېر چاپېره مرۍ وګنډي او یا ئې په قمیص د سینې د پاسه ګنډي -

**شالنګ** :- (شا+لَ+ن+ګ) (صف - مو ، مو - ه) خوړند - معطل - ایسار کړے - اټل کړے د کار نه ایستلے -

**ـــــ کول** :- (معطل کول - د کار نه ایستل - بېکاره کول -

**ـــــ کېدل** :- معطل کېدل - د کار نه ایستلے کېدل - بېکاره کېدل -

**شالنګول** :- (شا+لَ+ن+ګَ+ؤ+ل) (مص) زوړوند ول - اټالول - ایسارول - ملتوي کول معطل کول -

**شالنګونګ** :- (شا+ل+ن+ګَ+ؤ+ن+ګ) [حمص] (و---- شالنګونه)

**شالنګونه** :- (شا+لَ+ن+ګ+ؤ+نَ) (حمص) اټالونه ، ملتوي کونه - ایسارَونه - معطلي

**شالنګونکے** :- (شا+لَ+ن+ګ+وؤ+ن+ګے) (اس نا ، ج - کي) ایسارَوونکے - اټالوونکے ملتوي کوونکے - معطل کوونکے -

**شالنګېدل** :- (شا+لَ+ن+ګې+د+ل) (مص) زوړوندېدل - معطل کېدل - ملتوي کېدل اټالېدل -

**شالنګېدونکے** :- (شا+لَ+ن+ګې+دُو+ن+کے) (اس فا ، ج - کي) ایسارېدونکے - ملتوي کېدونکے - معطل کېدونکے -

**شالنګېدنګ** :- (شا+لَ+ن+ګې+دَ+ن+ګ) [حمص] (و---- شالنګېدنه)

**شالنګېدنه** :- (شا+ل+ن+ګې+د+نَ) (حمص) اټالېدنه - معطل کېدنه - ملتوي کېدنه

**شالورے** :- (شا+لو+رَے) (اس - مذ ، ح - ي) د شا طرف - هغه طرف چې شاته وي

**شالوګې** :- (شا+لُو+ګ+ی) (ق - اس - مو) د چرچنې یو قسم -

**شالولګے** :- (شا+لو+ل+ګے) (ق ، اس - مذ ، ج - کي) هغه مېږے چې وزرې ئې شوې وي -

**شالي** :- (شا+لي) (اس - مو) شولې - د وریجو/وریژو فصل -

**ـــــ زار** :- (زا+ر) (۱) هغه پټې یا زمکه چېرته چې شولې وریجې کرلې شي - شولګره -

(۲) د شولو فصل - هغه پټي یا زمکه چې د شولو فصل پکښې ولاړ شي -

**شالیلی** :- اص اصلاً دا د دوۀ مشهور رومانونو د معشوقو نومونه دي - یعني د لیلٰی مجنون او شاه یا شهی دلے خو په پښتو شاعرۍ کې دا د یو نوم په حېثیت استعمالېږي - انتظار کوي د چا په ګودر ناسته شا لیلی -

**شام** :- (شا+م) (ف - اس - مذ) ماښام - د (ماشام - ماخام) د غرېږوتو نه وروستو وخت - د مسلمانانو د یو مشهور ملک سوریا نوم -

**غریبان** :- (غَ+ري+با+ن) لفظي: د غریبانانو یا دمسافرو ماښام - اصطلاحاً د عاشورې (محرم) نه پس یولسمه شپه چې په دغه ورځ د امام حسین علیه السلام او د هغوي د ملګرو د شهید کېدلو نه پس - د رسول زنانه په سوځېدلو تنبوانو کښې ناستې وې -

**ـــــ کلیان** :- (کَ+ل+یا+ن) (هه تر - اس - مذ) د مشهور راګ نوم دے - ددې راګ مقرره وخت ماښام دے -

**شاماخ** :- (شا+ما+خ) (ف - اس - مذ) (۱) د سپین رنګ یو قسم غله ده - (۲) د زنانۀ سینه بند - انګیا -

**شامپو** :- (شا+م+پُو) (انګ - اس - مذ) د سر وینځنه - د سر وېښتۀ وینځل - (خصوصاً خاص قسم مائع مرکب نوم) -

**ـــــ کول** :- د سر وېښتۀ وینځل - د سر وېښتۀ خاص قسم مائع مرکب سره وینځل - شامپو کول -

**شامپین** :- (شا+م+پي+ن) (اس - جم) د شرابو یو مشهور قسم -

**شامپیون** :- (شا+پ+پي+یو+ن) [اس - مذ] (و---- شامپین)

**شامت** :- (شا+م+ت) (اس - مذ ، ج - ونه)

**ـــــ بدقسمتي** :- بدنصیبي - بده ورځ -

چې د ښکلو ننداره د رڅخه لاړه
خبر نه یم کوم ګناه ده ، کوم شامت (خوشحال)

**ـــــ اعمال** :- (اَ+ع+ما+ل) (عف تر = مذ) د عملونو په نتیجه کښې افت یا مصیبت راتلنه - د خپل عمل سزا (موندل) -

**ـــــ راتلل** :- بده ورځ راتلل - بد قسمتي راتلل - مصیبت یا تکلیف پېښېدل - لکه د ګیدړ شامت چې راشي نو ښار ته مخه اوکړي - (متل)

**ـــــ زده** :- (زَ+دَ) (عف تر - صف - ج - ګان) شامت وهلے - بدې ورځې اخستے - په مصیبت یا تکلیف کښې ګېر - بد حاله -

**ـــــ وهلے** :- (وَ+ۀ+لے) شامت زده - بدې ورځې اخستے - بدل - په مصیبت یا تکلیف کښې ګېر -

**شامتي** :- (شا+مَ+تي) (صف - مذ ، ج - تي ، مو - ئ) شامت وهلے - شامت زده - بدې ورځې اخستے -

**شامخه** :- (شا+م+خَ) [اس - مؤ] (و---- شاماخ)

**شامدام** :- (شا+مُو/م+دا+م) (ظرف) همېشه - تل - تل تر تله - مدام -

**شامکې** :- (شا+مَ+ک+ی) (اس - مو) مشهوره سبزي شمکے -

**شامکے** :- (شا+م+کَے) (و---- شامکې)

**شامل** :- (شا+مَ+ل) (ع - صف - مذ ، مو - ه) ګډ - شریک - یو ځاے -

حال :- (حا+ل) په حال کښې شریک - په حال کښې ملګرے - مددګار - مرسته - (عموماً د خداے پاک فضل په حقله وئیلے شي - لکه د الله تعالٰی فضل شامل وي نو دغه کار به زر سر ته اورسوم) -

**ـــــ ګرځول** :- شریکول - شریک ګڼل - شاملول -

**شاملات** :- (شا+م+لا+ت) (اس - مذ - ج - ونه) هغه جائیداد چې د ډېرو خلقو ملکیت وي هغه زمکه چې د ټول کلي په ملکیت د څۀ برخې په شریکه په ملکیت کښې وي - (داسې زمکه عموماً شړه پرته وي او څوک کر کرونده په کښې نۀ کوي)

**شاملاتي** :- (شا+م+لا+تي) (صف) هغه څیز چې مالکان ئې ګڼ وي - حصه دار - په حصه کښې شامل کس - حق دار -

**شامل خېل** :- (شا+م+ل+خېل) (اس مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د سلېمان خېلو څانګه ده - غلځي دي -

**شاملول** :- (شا+م+لَ+ؤ+ل) (مص مت) شریکول - سره ګډه ول - یو ځاے کول -

**شاملونګ** :- (شا+م+لَ+ؤ+ن+ګ) [ق - حمص] (و---- شاملونه)

**شاملونه** :- (شا+م+لَ+ؤ+نَ) (حمص) ورګډونه - شریکونه -

**شاملونکے** :- (شا+م+لَ+وُو+ن+کے) (اس - فاع - ج - کي) شاملولو واله - ورګډولو واله

**شاملې** :- (شا+م+لَ+ی) (اس - مو) یو قسم غرئیزه ګیاه ده -

**شاملېدل** :- (شا+م+لې+د+ل) (مص واله) شریکېدل - ورګډېدل یو ځاے کېدل

**شاملېدنګ** :- (شا+م+لې+د+ن+ګ) [ق - حمص] (و---- شاملېدنه)

**شاملېدنه** :- (شا+م+ل+د+نه) (حمص) ورګډېدنه - شریکېدنه - یو ځاے کېدنه -

**شاملېدونکے** :- (شا+م+لې+دُو+ن+کے) (اس فا - ج - کي) شریکېدونکے -

ورګډېدونکې - يو ځاې کېدونکې -

**شاموزي** :- (شا+مو+زِي) [اس مع - مذ] د پښتنو د يوې قبيلې نوم -

**شامه** :- (شا+م+مَ) (ع - اس - مو) دَ بينولو قوت - د بويولو قوت -

**شامه توره** :- (شا+مَ+تو+رَ) (اس - مو) د يوې مرغۍ نوم دے - شامه تولـه هم ورته واي - شمتوره - (په ترکۍ ورته قراقوش وائي) -

**شامۍ** :- (شا+مَ+ی) (اس - مو) (۱) قبر - (۲) د مړي صندوق - تابوت (۳) سامۍ - لحد - په قبر کښې د مړي د پاره قبر قبلې طرفته جدا ځاے کنستل - (په دې کښې مړے کښېښودے شي)-

**شامي** :- (شا+مي) (اس مع تر - صف) (۱) د شام د ملک اوسېدونکے - (۲) د شام په ملک کښې جوړ شوي (څيزونه) - (۳) د فقې يو مشهور کتاب -

**ــــ کباب**:- (کَ+با+ب) (ف تر ، اس جم) د کبابو يو خاص قسم - غالباً چې په اول سر کښې په شام کښې جوړ شوے وۀ -

**شاميانه** :- (شا+م+يا+نَ) (ف - اس - مو ، ج - نے) هغه لوے تنبو چې د څلورو واړو طرفونو ته خلاص وي او د سرونو د پاسه د سوري د پاره لګولے شي

**ــــ اودرول لګول**:- د چتر په شان پراستے تنبو د بانسونو د ستنو دپاسه لګول -

**شاميرخېل** :- (شا+مي+ر+خېل) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده - مشوانې دي -

**شان** :- (شا+ن) (ع - اس - مذ - ج : ونه) (۱) حالت - حال - (۲) لـويي - عظمت - شوکت - دبدبه ، رعب - (۳) طور - طريقه - (۴) درجه - مرتبه - مقام - (۵) ښکلا او ښائست - (۶) موسيقي - د موسيقۍ يو خاص سُر سره غړېدل - (۷) د تشبيه تورے - رنګ - څير - هسې طور غونډي وغېره لکه تور شان توربخن تور غونډې - سُور شان - سور بخن - سور غونډې -

**ــــ الٰهي**:-(ا+لا+هي) خداوندي - (خُ+دا+وَ+ن+دي) (۱) د خداے پاک عظمت - مقامَ - لوړ والے - جلال - رُعب - (۲) د خداے پاک کرۀ -

**ــــ خرابول**:- (۱) د چا عزت - درجه يا رعب او دبدبه کښې فرق راوستل - (۲) حالت خرابول -

**دار**:-(دا+ر) (عف تر - صف مذ ، مو - ه) شان واله - جلال لرونکے - رُعب داب واله - لوي - لوړ - عظمت واله -

**ــــ زياتول**:- رعب داب زياتول - عزت ، عظمت زياتول - قدر منزلت زياتول ښکلا او ښائست زياتول -

**ــــ زياتېدل**:- دبدبه زياتېدل - رعب زياتېدل قدر او عزت زياتېدل - ښکلا او ښائست زياتېدل -

**ــــ سره شان شړل**:- د حالاتو او ماحول مطابق کار کول زمانې سره چلېدل

**ــــ شان**:- رنګ رنګ ، قسم قسم - طور طور -

وصف دې خوبان که هم په دل هم په زبان که
مـدح دې شـان کـه بـلـبلان پـه چـمن لا (حافظ)

**ــــ شوکت**:- (شوَ+ک+ت) (۱) عظمت او دبدبه - لوړوالے - قدر او عزت - ښکلا او ښائست - (۲) نمائش او درز دروز -

ډېر نامداران په شان شوکت ظاهر زمونږ په ياد شو
يـا ئي نابـود شو نام نشان د بيلتانـۀ له تا خته (حافظ)

**ــــ ښودل**:- مال ، دوست وغېره نمائش کول -

**ــــ طراز**:- (طَ+را+ز) (ف تر - صف ، مذ ، مو - ه) کنايتـاً داسـې سـړي د پاره وئيلے شي چې هغه ځان ډېر لوے ماهر ، ښائسته وغېره ګڼي - بې ځايه نمائش کوونکے - شان ښوونکے - ځان ښوونکے -

**ــــ غږول**:- د تشو سازونو نغمه غږول -

**ــــ نـزول**:- (نُ+زُو+ل)(ع - اس - مذ) د نـازل کېـدو حالت - د قـران پـاک د نـازل کېدو يا راکوزېدلو پس منظر -

**ــــ بل**:- (ب+ل) بل رنګ - بل طوره - بل هسې -

**ــــ په دا**:- (پَ+د+) په دا يا په دې رنګ - په دا يا په دې طور - په دا يا په دې انداز -

**په دغه ــــ** (سره) :- په دغه طريقه - په دغه انداز -

**په دې ــــ**:- په دې طور - په دې انداز په دې طريقه - په دې رنګ -

**په ــــ**:- (پَ+=) (د تشبيه تورے) په رنګ په طور ، هسې

زما د پېغلو په شان ياره
زۀ بې له تانه زړګے ځنګه صبرومه (ټپه)

**په ــــ شان**:- په رنګ رنګ - په طور طور - په مختلف انداز کښې-

په شان شان مې د وجود ننداره وکړه
بيا به هم شي په خورنګه په څو شانه (خوشحال)

دور داد دوران دف چې ګردش ئې په شان شان دے
شــاه لــــه تـخته کـوز کـه خـواهـنده د درويـزي (حافظ)

**په ــــ کښې**:- په باره کښې - په حق کښې لکه: د ايات دهغه په شان کښې نازل شوے دے -

**په ښه ــــ** (سره) :- (۱) په ښه طريقه - په ښۀ انداز - په ښکلي انداز - په ښۀ رنګ - (۲) پوره طور سره - پوره پوره -

**په هر ــــ**:- په هره طريقه - په هر چل -

**په هېڅ ــــ**:- په هېڅ رنګ - په هېڅ طريقه -

**څه ــــ** :- (ت) س) څۀ رنګ - څۀ طريقه - څۀ هسې -

**د ګل په ــــ**:- د ګل په رنګ - د ګل هسې - ډېر ښکلے - ډېر ښائسته -

**يو ــــ**:- (يوَ -) يَو رنګ - يو طور-

**شانته** :- (شا+ن+تَ) (حرف مرکب) په شان - په شانې - په رنګ -

**ټيټ ــــ**:- ټيټ شان - مندرے شان -

**همدغه ــــ**:- همدغه رنګې - همدغه شان - په هم دغه انداز -

**يو ــــ**:- يو رنګ - يو شان - يو شانې -

**شانټۍ** :- (شا+ن+ټ+ی) (اس - مو) د اوبو بند - هغه بند چې د اوبو د سطحې د اوچتولو د پاره تړلے شي-

**شان خېل** :- (شا+ن+خېل) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د بيټنو يوه څانګه ده (د شان خېلو څانګې الٰه داد خېل او بلال خېل دي)-

**شانډوله** :-(شا+ن+ډو+لَ) (ق ، اس - مؤ ، ج - لے) پشته ورکول - اوږه ورکول - چوخه ورکول -

**شانډۍ** :- (شا+ن+ډَ+ی) (ق ، اس - مو) بنګلې شوي لښتې چې په کښې کانې کښېښودے شي او ولې يا د سيند بند ته وراچولے شي-

**شانزده** :- (شا+ن+ز+دَ) (ف - اس - عدد) شپاړس -

**شانزدهم** :- (شا+ن+ز+دَ+ه+م) (ف اس عدد) شپاړسم - شپاړسمه -

**شانس** :- (شا+ن+س) (ف - اس - ج - ونه) رنګ : چانس - موقع - وار -

**شانګرے** :- (شا+ن+ګ+رَے) (اس مذ) پنډۍ - ګيټۍ - شنګرے - د زلمو دنيا تر شانګرو پورې ده - (متل)

**ــــ په شانګري نيول**:- د پنډۍ نه نيول - ګيټو سره نيول - (بزه وغېره)-

**شانګورمېږې** :- (شا+ن+ګَ+وَ+ر+مي+ګي/ژے) (اس - مذ ، ج - مېږے) د مېږو يو قسم دے - فارسۍ کښې ورته "مور چې سوره" وائي -

**شانګوړے** :-(شا+ن+ګو+ړے) (اس - مذ ، ج - ي) کبرے - شاکړوپ چې ملا ئې بهر ته راوتې وي - محدّب -

**ــــ کول**:- کُبرے کول - په برغدولو ملا بهر ته را ايستل - شاکړوپ کول-

**ــــ کېدل**:- کُبړے کېدل - شاکړوپ کېدل ملا بهر ته راوتل - کُب راوتل -

**ــــ**:- (شا+ن+ګو+ړے) (کـاکړ) (اس - مـذ ، ج - ړي) ښښـتے - جوخـت - مښـت - نقش برجسته -

**شانګه** :- (شا+ن+ګَ) (اس - مو - ج - ګې) (۱) سانګه - څانګه - (۲) لــــرګے - درې

غابنې - شانګې چې بوس الوزوي او غنم ترې جدا کوي -

**شانګې** :- (شا+ن+ګَ+ې) [اس - مو] (و ---- شانګه ۲)

**شان مان** :- (شا+ن+ما+ن) (اس - مذ ، ج - ونه) شان شوکت - انداز -

**شانوشانټیک** :- (شا+نُو+شا+نُو+ټي+ک) (ق - جمله دلوبې) یوه خوندناکه جمله ده چې ماشومان ئې (په لوبه کښې) د څهٔ څیز یا ملګري په بیا موندلو د خوشحالۍ نه وائي -

**شانه** :- (شا+نَ (ف - اس - مو - ج - نې) (۱) اُوږه - د مټ او د مرۍ تر مېنځ د وجود حصه (۲) منګځ - ګمنځ - منګز - ګومنځه - (۳) د منګځې په شان یوه اله -

(۴) د اوږې پلن هډوکے چې ملا طرف ته وي -

**---- بین** :- (بي+ن) (ف تر - اس - مذ ، ج - ان ، مو - ه) فال کتونکے - فالي - پال کتونکے - (داسې قسم د بزې او ورے په هډوکي باندې، د یو قسم تعویذ په لیکلو ایستلے کېده ځکه ورته شانه بین وائي) -

**---- ساز** :- (سا+ز) (ف تر - اس - مذ ، ج - ان ، مو - ه) شانې یعنې منګزې (ږمنځې) جوړوونکے - ګمنځې جوړوونکے -

زهٔ دې ستا په کوئې کښې ومرم شانه سازه
ګندې هله مې ستا و زلفو ته شانې کړے (خوشحال)

**---- کول** :- ګمنځول ږمنځ کول -

دواړه زلفې شانه کړې معطرې سازې
چې اَلول ئې په سپین مخ زانګي له ډېره خیاله (خواجه محمد)

**----** :- (شا+نَ (اس - مو ، ج - ې) د جولاګیري یو اوزار - ګومنځ -

سر (شَا+نَ+سَ+ر) (ف تر - اس - مذ) ملا چرګک - هد هد - مشهور مارغهٔ

**شانه وانه** :- (شا+نَ+وا+نَ) (صف) په ناز ادا - خرامانه - په مکیج - مکیج (تګ) -

**---- تلل** :- نشمبدل - په نازو ادا تلل په نخرو تلل - په ارام ګرځیدل -

**شانې** :- (شا+نې) (ق - اس - مذ) هغه اوږده ګیاه چې د ولې په مېنځ کښې کېږي

**----** :- (شا+نې) (حرف) په شان - په شانته - شانته -

**---- په هر ----** :- په هر طور - په هر چل - په هره طریقه -

**---- دا ----** :- په داسې شان - په داسې طور - په دې رنګ -

**---- هغه ----** :- په هم هغه رنګ - په هغه شانته - په هغه انداز -

**شاوخوا** :- (شا+وُ+خ+وا) (پ تر - اس ظرف) (۱) شاته او خواته - چار چاپېره - هر طرفته خواوشا - (۲) نزدې - لکه د غرهٔ په شاوخوا کښې - (۳) نزدې نزدې - خواوشا - لکه د خواو شا کلي - (۴) تقریباً - لکه خواو شا زر روپۍ مې ولګېدې

**---- کتل** :- وړاندې وروستو کتل - هر طرفته پام کول -

**په ---- نه کېدل** :- دَ چا د مرستې او تعلق نه انکار کول -

**شاور** :- (شا+وُ+ر) (رنګ - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) شبېه د باران - (۲) د غسل خانې هغه اله چې اوبهٔ لکه د فوارې راغورځوي -

**شاوړے** :- (شا+وُ+ړے) (اس - مذ ، ج - ي) سېلاوه - د سېلاب راوړې لرګي - ګنګخرے - نیزوړے -

**شاول** :- (شا+وُ+ل) (اس - مذ ، ج - ونه) شاقول - د معمارانو ترکاڼانو هغه اله چې د دېوال وغېره یخ والے پرې معلوموي -

**شاولے واولے** :- (شا+و+لے+وا+و+لے) (صف) (۱) بې قاعدګۍ سره - بې ترتیبه - (۲) حېران - متّحیر - (ق)

**---- پرېوتل** :- بې ترتیبه او بې قاعدګۍ سره پرې وتل لکه چې ډېر زیات ستړے سړے په کټ کښې داسې وغزېږي چې لاسونه پښې ئې یو خوا بل خوا (بې دمه شان) خورې وي -

**---- غورځېدل** :- (و ---- شاولے واولے پرېوتل)

**---- کېدل** :- (۱) حېران کېدل - متّحیر کېدل - (ق) (۲) بې ترتیبه کېدل - (و ---- شاولے واولے پرېوتل) -

**شاوند** :- (شا+وَ+ن+د) (اس مع) د پښتنو یوه قبیله چې د زرکون یوه څانګه ده -

**شاه** :- (شا+ه) (ف - اس - مذ ، ج - ان) (۱) باچا - بادشاه -

که د شاه دربار ته پېش کش ورشم
شاه به وائي ، ولې زهٔ دې روسترار نهٔ وم (حافظ)

(۲) د سېدانو لقب - (۳) د فقیرانو لقب - (۴) د شطرنج د لوبې باچا - (۵) شهي - شها ، معشوقه -

هر عاشق سره هسې شاه وردرومي
نور ئې کومه ارزو وي له جانه (خوشحال)

**---- اشرف** :- (اس صف) د میا شاه اشرف اجمیري نه مراد - غالباً خواجه معین الدین چشتي رحمته الله علیه دے -

د اجمیر میا شاه اشرفه
لـه درګاه مشرفه (حافظ)

**---- انجم** :- (اَ+ن+ج+م) (ف تر ، اس مذ) دستور و باچا - مجازاً نمر - نور -

**---- باز** :- (با+ز) (اس - مذ ، ج - ونه) (۱) لوے باز - سپین باز - (۲) د رباب یا د تنبل غږولو ډکے مضراب -

**---- بلوط** :- (بُ+لُو+ط) (ف تر - اس - مذ) په ونو کښې لویه او لوړه ونه - سبیړې - څېړې -

**---- بیت** :- (بَے+ت) (ف تر - اس مذ) په غزل یا قصیده کښې د ټولو نه غوره

**---- پر** :- (پَ+ر) (ف تر - اس - مذ ، ج - ونه) لوے وزر - د ټولو نه لوے وزر -

**---- پسند** :- (پَ+سَ+ن+د) (ف تر - اس - مذ ، م - ه) (۱) د بادشاه د خوښې هغه څیز یا کس چې د باچا خوښ وي - (۲) د مسلمانانو یو نوم -

**---- پور** :- (پُو+ر) د بادشاه زوے - شهزاده -

**---- توت** :- (تُو+ت) (ف تر - اس مذ ، ج - ان) لوے توت - هغه توت چې د عام توتانونه او ږد وي - شهتوت -

**---- تیر** :- (تي+ر) (ف تر اس - مذ ، ج - ان) لوے تیر - بیش - بش -

**---- جهان** :- (ج/جَ+ها+ن) (ف تر - اس - مذ) (۱) د جهان باچا - د دنیا بادشاه - (۲) د یو مغل بادشاه لقب - (۳) د مسلمانانو یو عام نوم -

**---- جي** :- (جي) (ف تر - اس - مذ) (۱) د سېدانو لقب - (۲) د ځېنو فقیرانو لقب -

**---- چین** :- (چي+ن) (ف - تر - اس مذ) لفظي :- د چین د ملک بادشاه - کنایتهً نمر (نور نمر) ځکه چې نمر د مشرق د طرفه راخېژي او د چین ملک هم مشرق طرف ته دے -

**---- خانم** :- (خا+ن+م) (ف تر - اس - مو) (۱) د لوے او معتبر کور ښځه - (۲) د مسلمانانو ښځو یو نوم - (۳) (طنزاً) کبرجنه ښځه (۴) (طنزاً) نازک مزاجه ښځه -

**---- خاور** :- (خا+وُ+ر) (ف تر - اس - مذ) د مشرق باچا - کنایتهً نمر - نور -

**---- خېل** :- (و ---- شاه خېل)

**---- دانه** :- (دا+نَ) (ف تر - اس - مو ، ج - نې) (۱) د مرغلرې ډېره غټه دانه - د ملغلرې د ټولو نه لویه دانه - (۲) د تسپې (تسبیح) په دانو کښې د ټولو نه غټه دانه - (۳) د بنګو تخم -

**---- دوجهان** :- (دو ، ج/جَ+ها+ن) (ف تر - اس - مذ) د دووهٔ جهانو سردار - مجازاً حضور پاک ﷺ -

**---- راه** :- (را+ه) (ف تر - اس - مو ، ج - ګانې) لویه لار - لوے سړک - عام چلنده او لویه لار یا سړک -

**---- رګ** :- (رَ+ګ) (ف تر - اس - مذ) د مرۍ لوے رګ - هغه رګ چې په کړ جاندار ژوندے نهٔ پاتې کېږي -

ـــــ **رګ پرې کول**:- هغه رګ پرې کول چې د سرې ژوند پرې اړه لري- مجازاً چاته داسې نقصان رسوول چې هغه کار معامله تجارت وغيره پرې بالکل ختم شي-

ـــــ **لګ غوڅول**:- (وـــــ شاه رګ پرې کول)

ـــــ **زاده**:-(زا+دَ) (ف تر - اس - مذ ، ج- ګان) (۱) د بادشاه زوے - باچا زاده - شهزاده - (۲) نېک - ښه خويه - (۳) نالائق - غبي (طنزاً)

ـــــ **زادګي**:- (زا+د+ګ+ي) (ف تر - اس - مو) د بادشاه لور - د باچا لور - شهرزادګۍ -

ـــــ **زادۍ**:- (زا+دَ+ی) (وـــــ شهزادګۍ)

د حميّد دا بې کرداره ګفتار پوچ دے
لکه لولي ګدای لور په شاهزدۍ (حميد)

ـــــ **زمان**:-(زَ+ما+ن) (ف تر - اس - مذ) (۱) د زمانې بادشاه - د وخت باچا - (۲) د مسلمانانو سړو يو نوم -

ـــــ **زنګ**:- (زَ+ن+ګ) (ف تر - اس - مذ) د حبشو (د ملک) بادشاه - کنايتهً شپه چې د حبشو په شان شپه هم توره تيارۀ وي -

ـــــ **سوار**:- (س/سَ+وا+ر) (ف تر - اس - مذ ، مو - ه) (۱) د اس سورلۍ ماهر - (۲) د مسلمانانو سړو يو نوم -

ـــــ **سور**:- (وـــــ شاسوار)

د دولت په اس دې هر نا سور سور نۀ شي
که سوارې ورباندې کاندې خوشاه سور (خوشحال)

ـــــ **صاحب**:- (صا+ح+ب) (وـــــ شاه جي)

ـــــ **کار**:- (کا+ر) (ف تر - اس - مذ ، ج - ونه) په کارونو کښې د ټولو نه لوے کار - مجازاً چا د فن يا د هنر د ټولو نه غوره کارنامه -

ـــــ **لولاک**:- (لَو+لا+ک) مراد ترې رسول پاک حضرت محمد مصطفٰی ص دے - دې کښې يو حديث قدسي ته اشاره ده چې "لولاکَ لَمَا خَلقتُ الافلاکَ" (اے پيغمبر ص) که ته نۀ وے نو ما (الله تعالٰی) به دا جهانونه نۀ وو پيدا کړے -

ـــــ **مردان**:- (مَ+ر+دا+ن) (ف تر - اس - مذ) د سړو يا د مېړنو باچا سردار ، د حضرت علي کرمه الله وجهه لقب دے -

څلورم يار ئې علي رضي الله عنه شاه مردان وۀ
لـــه کافـــرو ئې هـــمېش مـــخـــاصـــمـــه ده (خواجه محمد)

ـــــ **مشرق**:- (مَ+ش+ر+ق) (وـــــ شاه خاور)

ـــــ **مسته**:- (مَ+س+تَ) (صف - مو ، ج - تې) ډېره مسته - د معشوقو په صفت کښې وايه شي - (عموماً په شاعرۍ کښې)

ـــــ **مېخ**:- (مې+خ) (اس - مذ ، ج - ونه) لوے مېخ يا مرړے - د جولاګيرې يو اوزار -

ـــــ **ميران**:- (مي+را+ن) (وـــــ شاه مردان)

ـــــ **مېرمنه**:- (مې+ر+م+ن) (رق - فپ تر - مو ، ج - نې) شاه خانم - بادشاه بېګم -

ـــــ **نامه**:-(نا+مَ) (ف تر - اس - مو ، ج - مې) (۱) د بادشاهانو منظوم تاريخ - (۲) د فردوسي دمشهور کتاب نوم چې پښتو کښې ئې هم (بدله شان) ترجمه شوې ده -

ـــــ **نحل**:-(نَ+ح+ل) (عف تر - اس - مذ) د شاتو د مچو بادشاه چې هغه د نورو مچو نه لوے او اوږد وي - (دا په اصل کښې ماده وي ځکه ورته "رانۍ" هم وائي) -

ـــــ **نشين**:- (ن+شي+ن) (ف تر - اس - مذ) (۱) هغه ځاے چې بادشاه پرې کښيني - د بادشاه د ناستې ځاے - (۲) د کومې ډلې يا د جرګې د مشر د ناستې ځاے -

ـــــ **وار**:-(وا+ر) (ف تر - صف) (۱) د بادشاه لائق - (۲) ډېر زيات قيمتي - (مرغلرې) -

ـــــ **وره**:- (وُ+ره) (رق - صف - مو ، ج - رې) د بادشاه لائقه (د شهسوار ترجمه ده) -

**شاهانه** :- (شا+ها+نَ) (ق - صف) د بادشاهانو په رنګ - د بادشاهانو په شان ، باچاهي انداز - د بادشاهانو د شان او درجې مطابق -

دُر چې قيمت نـاک وي پـه دربار شاهانه کښې
قدر به ئې ورک شي که ئې يو سي څوک کناس ته (حافظ)

ـــــ **مزاج**:-(م+زا+ج) (ف تر - مذ ، ج - ونه) د بادشاهانو په شان طبيعت د بادشاهانو په رنګ طبع - د باچايانو خوي خصلت -

**شاهباز خېل** :- (شا+ه+باز+خېل) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د بيزود يوه څانګه ده او بيزودي ، ملک شاهي ، ايمل خېل ، بهلول زي محسود دي -

**شاه باس خېل** :- (شا+(ه)+با+س+خېل) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله چې د مير سېدخېل وړوکې څانګه ده - او مير سدخېل ، منزل خېل ، کمال خېل ، صاحب جان خېل ، اکاخېل افريدي دي -

**شاهبانه کور** :- (شا+ه+با+نَ+کو+ر) (اس - مع) د سلطان خېلو يوه څانګه ده چې خمزه خېل دي او حمزه خېل د ګندا و حليم زئ مهمند دي -

**شاه بېګ خېل** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د رحيم داد خېلو يوه څانګه ده او رحيم داد خېل ، عبدالرحمان خېل ، نانا خېل ، بهلول زي محسود دي -

ـــــ:- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله چې د فتح خېلو يوه څانګه ده او فتح خېل ، ميرې خېل ، پخۍ ، بډۍ ، اقاخېل افريدي دي -

ـــــ:- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله چې د تور خېلو يوه څانګه ده او تورخېل ، اله خېل ، ميتا خېل ، کوکي خېل ، افريدي دي -

**شاه بېګ کور** :- (شا+(ه)+بې+ګ+کو+ر) (اس مع) د شهباز کو يوه څانګه ده چې عيسٰی خېل دي - عيسٰی خېل د سپاه څانګه ده چې بائيزي مهمند دي - (په يوه شجره کښې د عيسٰی خېل په ځاے موسٰی خېل ليکلے دے) -

**شاهجان** :- (شا+ه+ج/جَ+ها+ن) (اس مع) (۱) د مشهور مغل باچا نوم دے چې د جهانګير باچا زوے وۀ او د اورنګ زيب عالمګير پلار وۀ - په اخر وخت کښې ئې عالمګير د ځينو وجوهاتو له کبله په قيد کښې اچولے وۀ او په تخت ئې قبضه کړې وه - دا ګرې تاج محل ، د دۀ عظيم يادګار دے چې د دنيا په اووۀ عجائباتو کښې شمېرلے شي - (۲) محمد شا جهان خان - نواب دير چا چې د پېرنګيانو ډېر امداد کړے وۀ خو ۱۹۴۰ ء کښې معزول کړے شو - او د هغۀ په ځاے د هغۀ زوے محمد شاه خسرو ئې د دير نواب کړو - وروستو دا نوابي هم ختمه شوه او د دير رياست په پاکستان کښې شامل کړے شو -

**شاه جيان خېل** :- (شا+(ه)+ج/جَ+ها+ن+خېل) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د جان بېګ خېل يوه څانګه ده او جان بېګ خېل ، علي خان خېل ، سرکي خېل ، مده خېل ، ابراهيم خېل ، اتمان زئ ، درويش خېل وزير دي -

**شاه خېل** :-(شا+(ه)+خې+ل) (اس مع) د ابراهيم خېلو څانګه ده چې ګدائي زئ دي - ګدائي زي الياس زي بنيروال دي -

**شاه خېل** :-(ددغه) (اس مذ) د زوم کورنۍ - داماد خېل (ظفر) - (وـــــ د شاه مخفف "شاه خېل")

**شاهد** :- (شا+ه+د) (ع - اس - مذ ، ج - ان ، مو - ه) (۱) ګواه - ګواهي ورکونکے - شاهدي کوونکے - (۲) کتونکے ننداره کوونکے (۳) ښکلے - ښائسته - محبوب معشوق -

ـــــ **باز**:-(با+ز) (ف تر - صف) ښکلي هلکانو او ښځو ، ډمو وغيره سره تعلق لرونکے - يا ورسره مينه کوونکے - هغه کس چې هلکان يا ښځې ساتي -

**ـــــ بازي**:- (با+زي) (ف تر - اس ،مو) ښکلي هلکان يا ښځې يا ډمې ساتل هلک بازي ، ډم بازي - بچه بازي -

د شرابو جام په لاس شاهد بازي کا
شېخ د ښار عبادت پرېښو زنديق شه (خوشحال)

**ـــــ پرستي**:- (پَ+رَ+س+تي) [اس - مو] (و---- شاهد بازي)

**شاهدانه** :- (شا+ه+دا+نَ) (ف تر صف) بد شاهد په شان - د معشوقو په انداز-

**شاهدي** :- (شا+ه+دي) (فپ - اس - مو) ګواهي - شهادت -

**ـــــ تېرول**:- ګواه تېرول په چا -

**ـــــ کول**:-ګواهي ورکول - شهادت ورکول په شهادت بيان ورکول -

**ـــــ ل**:-ګواهي - ګواهي ورکول -

دا چې ما په عشق کښې بد لوي وګړي
وارِه خدا ے تــه شاهـدي زمــا پــه ښولي (حميد)

**ـــــ ورکول**:- (و-----شاهدي کول)

**شاهر** :- (شا+ه+ر) (ع - اس - فاع - مذ ، مو - ه) خوځوونکے - جنبش ورکوونکے - ښوروونکے -

پــه خــاني زنــدګاني ځۀ شادماني ده
مرګ موله سېف په لاس هر دم شاهر شي (حافظ)

**شاهراه** :- (شا+ه+را+ه) (اس - مو - ج - ګاني) لويه لار - لوے او پلن سړک -

**شاهرګ** :- (شا+ه+رَ+ګ) [اس مع] په بلوچستان کښې د پښتنو د يوې علاقې نوم دے -

**شاه زئ** :- (شا+ه+زَ+ئ) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د شادو زيو ځانګه ده او شادوزئ ، علي زئ ، سنځر خېل ، کاکړ دي -

**شاه عالم خېل** :- (شا+ه+عا+لَ+م+خېل) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د قاسم خېلو ځانګه ده او قاسم خيل ،چهار خېل ، شمن خېل محسود دي -

**ـــــ**:- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د هوتکو ځانګه ده - غلځي دي -

**شاه علي زئ** :- (شا+ه+عَ+لي+زَ+ئ) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د خوئيداد زئيو ځانګه ده او خوئيداد زئ د شادو زئ ، علي زئ، سنځر خېل ، کاکړ دي

**شاه ګل خېل** :- (شا+ه+ګُ+ل+خېل) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د زعمت خېلو يو ځانګه ده او زعمت خېل ، متابيتني دي -

**شاه ګل کور** :- (شا+ه+ګ+ل+کو+ر) (اس مع) د رسول کور يوه ځانګه ده چې دول بېګ کور ځانګه ده چې حليم زي مهمند دي -

**شاه مالي خېل** :- (شا+ه+ما+لي+خېل) (اس مع) د پښتنو قبيله ده شهمالي غسي هم نومېږي چې د مزک خېلو يوه ځانګه ده او مزک خېل اخېل (يا ابراهيم خېل) د اسمٰعيل زئ اورک زي دي - (بلـه شجره کښې شمالي خېل ليکلے دے چې د شاه مالي خېل مخفف دے) -

**شاه محمد خېل** :- (شا+ه+مَ+ح+مَ+د+خېل) (اس - مو) د پښتنو يوه قبيله ده چې د پياخېلو ځانګه ده او پيراخېل ، جمالي خېل ، ملک شاهي ، ولي خېل ، اتمان زي درويش خېل وزير دي -

**شاه مل خېل** :- (شا+ه+مَ+ل+خېل) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله چې د فېروز خېلو يوه ځانګه ده او فېروز خېل ، تور سپر ريګي خېل، ګلې ، ادم خېل افريدي دي-

**شاه منصور** :- (شا+ه+مَ+ن+صُو+ر) (اس مع) د يوسفزو د پښتنو د مشهور مشر ملک احمدورور وۀ - ددۀ لور بي بي مبارکه بابر باچا په خپله نکاح کې راوستې وه او دغه شان ئې يوسفزو سره دوستي قائمه کړې وه -

**شاه منصور خېل** :- (شا+ه+مَ+ن+صُو+ر+خې+ل) (اس مع) دا د دادو خېلو يوه ځانګه ده چې ترک زي مهمند دي-

**شاه ميرائي** :- (شا+ه+مي+را+ئ) (اس مو) د پښتنو يو قبيله ده چې د درې پلارو ځانګه ده او درې پلاري ، توري خېل ، ابراهيم خېل ، اتمان زي ، درويش خېل وزير دي -

**شاهنشاه** : (شا+ه+ن+شا+ه) (ف تر - اس - مذ) (۱) د بادشاهانو بادشاه - د ځينې داسې بادشاهانو لقب چې ځينې نور بادشاهان ئې ماتحت وي- (۲) د داسې بادشاهانو لقب چې د لوے بادشاهۍ لـه کبلـه دغـه لقب ئې اختيـار کړے وۀ - يعني بـل کوم بادشاه ئې ماتحت نۀ وۀ - (دا پـه اصـل کښې شاهان وو - وروستو ډېر استعمال سره شاهنشاه شو-

**شاه نور کور** :- (شا+ه+نُو+ر+کو+ر) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله چې د زمان خېلو يوه وړه ځانګه او زمان خېل ، مکي خېل ، کتيه خېل، حسن خېل ، ميتا خېل ، کوکي خېل افريدي دي -

**شاهواز خېل** :- (شا+ه+وا+ز+خېل) (اس مع) د پښتنو قبيله چې د خواجه حواس خېلو ځانګه ده او خواجه حواس خيـل ، علي خېـل دي چې د اورکزيو همسايه قبيله ده-

**شاهوزي** :- (شا+هو+زَ+ئ) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د يحيٰی زيو يو ځانګه او يحيٰی زئ ، حسن خېل شيراني دي -

**ـــــ**:- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يو قبيله چې د عمر زيو ځانګه ده او عمر زئ ، زهره زي موسیٰ خېل دي -

**ـــــ**:- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يو ځانګه ده چې د ملک زيو ځانګه ده ملک زئ ، غنجي ، زرکون دي -

**شاه ولي خېل** :- (شا+ه+وَ+لي+خېل) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د سکندر خېلو يوه ځانګه ده او سکندر خېل ، عبدل خېل ، بوزاخېل ، مهمت خېل ، اتمان زئ ، درويش خېل ، وزير دي - (د بوزاخېل نوم په يو ځاے کښې بوراخېل هم ليکلے دے) -

**شاهي** :- (شا+هي) (اس - مو) يوه پخوانۍ سکه -

**ـــــ**:- (شا+هي) (ف تر - صف) (۱) هغه څيز چې بادشاه سره تعلق لري - (۲) هغه څيز چې د بادشاه ملکيت وي -

**ـــــ خاندان**:- (خا+ن+دا+ن)

**ـــــ کورنۍ**:- (کو+رَ+نَ+ۍ) هغه خلق (زنانه سړي - وارۀ) چې د کوم بادشاه خپلوان وي -

**ـــــ خزانه**:- (خَ+زا+نَ) (ف - تر - مو ، ج - نې) هغه خزانه چې بادشاه سره تعلق لري يا د باد شاه ملکيت وي -

**ـــــ دربار**:- د بادشاه دربار - چېرته چې بادشاه د خپل رعيت فرياد اوري -

**فرمان**:- (ف+ر+ما+ن) (ف تر - اس - مذ ، ج - ونه) هغه حکم چې د بادشاه د طرفه جاري شوې وي - د بادشاه د حکم کاغذ -

**محل**:- (مَ+حَ+ل) (ف تر - اس - مذ ، ج - ونه) هغه مانۍ چې بادشاه او د هغۀ خاندان په کښې اوسي - د بادشاه اوسېدو محل -

**شاهي بېګ** :- (شا+هي+بې+ګ) (اس مع) ساغري خټک دي ، ساغري په بولاقو ګډ پړي

که ئې خوښ کړے يا ئې خپل کړې
شــاهي بــېګ غــونـدې بـلاوي (خوشحال)

**ـــــ**:- (اس مع) د خوشحال خان خټک يو مخالف ساغري خټک چې د ډوډې په جنګ کښې شامل وو -

شاهي بېګ ساغرے په تن ملک ميرنے دے
تــــرا شيرا او ددۀ کــــړې کــار تـمـــــام (خوشحال)

**شاهي خېل (۱)**:- (شا+هي+خېل) (اس مع) د پښتنو د يو قبيلې نوم دے چې د

بدويو څانګه ده او پدمي ، تائب خېل ، غمزوني ، ملي زاد دوړ دي -

ـــــ:- **(ددغه)** د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د موسٰی خېلو يو څانګه ده او موسٰی خېل مّلي زاد داوړ دي -

ـــــ:- **(ددغه)** (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د غلام خېلو څانګه ده او غلام خېل ، هبېت خېل ، جواکي ، جواکي ، ادم خېل افريدي دي -

ـــــ:- **(ددغه)** (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې دوتيزيو څانګه ده او د تي زئ، ماموزي زے يا زوائي لخت دي -

ـــــ:- **(ددغه)** (اس مع) د پښتنو يوه قبيله - چې د هبېت خېلو څانګه ده او هبېت خېل ، جوکي ، ادم خېل افريدي دي - (بله شجره کښې د شاهي خېل په ځاے " تشخل خېل" ليکلے دے) -

**شاهي کور** :- (شا+هي+کو+ر) (اس مع) دا د برت خېلو څانګه ده چې ، اکازي ، عيسٰی زي يوسف زي دي -

**شاهې زئ** :- (شا+هې+زَ+ئ) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د سمنګلو څانګه ده او سمنګلي ، کانسي دي -

ـــــ:- **(ددغه)** (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د کانو زيو څانګه ده او کانو زئ د تتو زئ ، حسن ، دومړ ، سنځرخېل کاکړ دي -

**شـاهين** :- (شا+هي+ن) (ف-اس-مذ ، ج-ان) (۱) يو لوے ښکاري مارغهٔ - لوے باز - (۲) (ت) د تلې ډنډۍ -

**شائبه** :- (شا+ئې+ب) (ع-اس-مو ، ج-بې) (۱) ګډون - امېزش - (۲) شک - شبه

**شائسته** :- (شا+ئې+س+تَ) (ف-صف) (۱) موزون - مناسب - قابل - لائق - (۲) تهذيب والا - مهذب - سړيتوب والاد ښوو اخلاقو خاوند -

**شائسګي** :- (شا+ئې+س+تَ+ګي) (ف تر-اس مو) (۱) تهذيب - سړيتوب - خوش اخلاقي تميز - (۲) قابليت - اهليت - موزونيت مناسب -

**شـائع** :- (شا+ئې+ع) (ع-اس-مذ) مشهور شوے - اشکارا شوے - معلوم شوے عام شوے - نشر شوے -

ـــــ **کول**:- مشهور کول - شهرت ورکول - هر چاته معلوول - مشتهر کول - خورول - نشر کوول -

ـــــ **کېدل**:- مشهورېدل - شهرت موندل - هر چاته معلومېدل - مشتهر کېدل - خورېدل -

**شائق** :- (شا+ئې+ق) (ع-اس-مذ ، مو-ه) شوق لرونکے - شوق مند - شوقين - مشتاق - ارزو لرونکے - خواهشمند - غوښتونکے -

ع که نور څه راته وائې زهٔ خوشحال ئې شائق نهٔ يم

**شـائقين** :- (شا+ئې+قي+ن) (ع-اس-ج) د شائق جمع - شوق لرونکے - مشتاقان -

**شائګان** :- (شا+ئې+ګا+ن) (ف تر-اس-مذ) (۱) د بادشاه لائق - چې بادشاه سره جوړېږي - شاه وار - (۲) د قافيې د علم په اصطلاح کښې د قافيې يو عېب ته وائي - هغه دا چې يو لفظ هم په يوه معنٰی کښې تکرار سره راوستے شي -

**شائي لاک** :- (شا+ئي+لا+ک) (اس مع) د شيکسپير ديوې ډرامې کردار چې بې کچه ډېر شوم او ظالم وهٔ - مجازاً سخت زړے ظالم او نا ترسه سړے -

**شايان** :- (شا+يا+ن) (ف-صف مذ ، مو-ه) لائق - قابل سزاوار - مناسب - جوګه -

دغه پست همت شايان د غليوازې دے
پـه چرګوړيـو نظر کله د شاهين شي (سعيد)

ـــــ **شان**:-(شا+ن) (ف تر-صف) د چا د شان يا مقام يا د منصب سره سم د چا د شان سره جوړېدونکے - د چا د شان ، مقام - منصب ، شوکت سره مناسب او جوړېدونکے -

**شايد** :- (شا+يَ+د) (ف-تف-حرف شک) يوه کلمه چې په جمله کښې پرې شک يا غېر يقين والے څرګندولے شي کېدے شي - غالباً - ممکنه ده - لکه شايد چې هغه نن ماښام راورسي -

**شايي** :- (شا+يي) (اس-مو) درې پيسېز - پنځ پولي - (پخوانۍ سکه) -

**شائي بايي** :- (شا+يي+با+يي) (ق-اس-مو) عېش او طرب - خوشحالي مزه چرچه

ـــــ **کول**:- عېش طرب کول - مزې چرچې کول -

**شب** :- (شَ+ب) (ف اس) شپه -

ـــــ **اسرىٰ** :- (اَ+س+را) (عف تر-اس مع)د اسرىٰ شپه - هغه شپه چې په کښې رسول پاک ص معراج ته تلے وهٔ - د معراج شپه -

ـــــ **افروز**:-(اَ+ف+رو+ز) (ف تر-صف مذ ، مو-ه) شپه روښانه کوونکے - د شپې رڼا کوونکے - مراد ترې سپوږمۍ ده اور اورکے ترې هم مراد اخستے شي -

ـــــ **باش**:- (ف تر-اس فا ، ج-ان) د شپې پاکتې کېدونکے - شپه تېروونکے -

ـــــ **باشي**:-(ف تر-اس-مو) شپه تېرونه - د شپې (په کوم ځاے کښې پاتې کېدنه)

ـــــ **بخېر**:- (بَ+خې+ر) (ف تر-کلمه دعائيه) دعائيه جمله ده چې د شپې په سر کښې د يو بل نه رخصتېدو په وخت يو بل ته وئيلې شي - شپه دې په خېر -

ـــــ **برات**:- (بَ+را+ت) (ف تر-اس مذ) شوقدر - د نجات شپه د شعبان (شوقدر) د مياشتې پنځلسم تاريخ - شپه - عقيده ده چې په دې شپه د بني ادم د پاره د راتلونکي کال د پاره د رزق تقسيم کولے شي - عام مسلمان زنانه په دغه شپه حلوا وغېره پخوي او په چم ګاونډ کښې ويشي - نېک خلق دا شپه عبادت کښې تېره وي - پخوا يو رواج جوړ شوے وهٔ چې هلکانو جينکو به دغه ماښام کښې اتشبازي کوله خو اوس دا رواج تر ډېره حده ختم شوے دے -

ـــــ **بېدار**:- (بې+دا+ر) (ف تر-صف مذ ، مو-ه) د شپې ويښ او بېدار اوسېدونکې شپه روڼوونکے ، شوګيره کوونکے عموماً مراد ترې هغه سړے اخستے شي چې (درسته) شپه د خداے پاک په عبادت کښې تېروي

ـــــ **بېداري**:- (بې+دا+ري) (ف تر-اس-مو) د شپې ويښ او بېدار اوسېدنه شپه روڼې - شوګيره - د شپې د خداے پاک په عبادت کښې ويښ اوسېدنه

ـــــ **پرک**:- (پَ+رَ+ک) (اس-مذ ، ک-کان) ښاپېرک - مشهور ځناور دے چې هم بچې راوړي هم (د شپې) الوځي -

شب پرک بې خپلې سُوړې نور څهٔ ويني
د خورشيد په ديد ئې سترګې نابينا وي (خورشيد)

ـــــ **تار**:- (تا+ر) (ف تر-اس-مو) توره شپه - تيارهٔ شپه -

ـــــ **چراغ**:- (چَ+را+غ) (ف تر-اس-مذ) يو قسم ملغلره ده چې د شپې رڼا کوي درشنګون هم ورته وائي (مشهوره ده چې يو قسم سمندري غوا ده چې هغه د څهٔ د پاره د شپې د اوبو نه راوخي نو دا ملغلره د خولې نه په زمکه واچوي او ددې په رڼا کښې څرېږي -

ـــــ **خوابي**:- (خ+وا+بي) يا (خا+بي) (ف تر-مو) د شپې خوب کوونه - د شپې د خوب سره متعلق لکه د شب خوابۍ جامې -

ـــــ **خواني**:- (خ+وا+ني) يا (خا+ني) (ف تر-مو) د شپې لوستنه - د شپې قصې وغېره وئيل -

ـــــ **خون**:- (خُو+ن) (ف تر-مذ ، ج-ونه) د شپې په تيارهٔ کښې او د دښمن په بې خبرۍ کښې حمله کول -

ـــــ **خېز**:- (خې+ز) (ف تر-صف-مذ ، مو-ه) د شپې پاڅېدونکے - شب بېدار

ـــــ **خيـزي**:- (خي+زي) (ف تر - اس - مـو) د شپې پاڅېدنـه ، پـه شـپـه کښـې پاڅېدنه شب بېداري -

پاڅه شب خېزي کړه په طاعت مولی راضي کړه
يـو څـۀ عمـل زيـور ، بـور جـل د محبوباله (حافظ)

ـــــ **ديجور**:- (دي+جُو+ر) (عف تر - مو) تکه توره شپه - تيارۀ شپه -

ـــــ **ديـز**:- (دي+ز) (ف تر - مـذ) د تـور رنـګ اس - مشـکي اس (دا د ايـران د يـو پخواني باچا - خسرو پرويز د اس نوم وۀ -

ـــــ **رنګ**:- (رَ+ن+ګ) (ف تـر - صـف ، مـذ ، مـو - ه) (۱) د شـپې د رنـګ هسـې - تور - ډېر - تور - (۲) تور اس - مشکي اس - مطلق اس - (۳) د ځينو سرو په نومونو کښې هم استعمالېږي -

ـــــ **زفاف**:- (زَ+فا+ف) (ف تر - اس) هغه رومبۍ شپه چې نوې وادۀ شوے زلمې او ناوې يکښې يو ځاے کېږي - د کور والي اولنۍ شپه -

ـــــ **زنده دار**:- (ز+ن+دَ+دا+ر) (ف ، تر ، صف مذ ، مو -ه) شپه ژوندۍ لرونکے - د شپې ويښ اوسېدونکے - شب بېدار - د شپې عبادت کوونکے -

ـــــ **شـهادت**:- (شَ+ها+دَ+ت) (ف تـر - اس - مـو) د عاشـورې هغـه شـپه چې د حضرت امام حسين عليه السلام درسته په عبادت کښې تېره کړې وه او بيا په صبا د کربلا په مېدان کښې شهيد کړے شو -

ـــــ **عاشور**:- (عا+شو+ر) (ف تر - اس - مو) د عاشورې لسمه شپه -

ـــــ **قـدر**:- (قَ+د+ر)(ف تر - اس - مو) د قـدر شپه - پـه فارسـۍ کښـې تـرې مـراد "ليلته القدر" دے چې معنٰی ئې د قدر شپه ده - دا شپه ډېره زياته برکتي ګڼله شي خو صحيح طور سره نه ده معلومه چې دا کومه شپه ده - عموماً د روژو (رمضان د مياشتې) يويشتمه يا اوويشتمه شپه ګڼله شي - په پښتنو کښې "شوقدر" (چې د شب قدر بدل شکل دے) - د شعبان د مياشتې د پينځلسم تاريخ شپه ګڼله شي - (و--- شب برات)

پـه شبقدر کښې نصيب د اودۀ نـۀ شته
دغه بخت ئې پېرزو کړے دے په ويښه (حافظ)

ـــــ **کور**:-(کو/کُو+ر) (ف تر - صف ، مذ ، ج - ه) هغه کس چې د شپې ئې نظر نـۀ لګي او هيڅ ورتـه نـۀ ښکاري - شمکور (د شبکور بـدل شکل) پـه شـپه ړوند

ـــــ **کوري**:- (کو+ري) (ف تر - اس - مو) د شپې ړوندتيا - د شپې تطر نـۀ لګېدنه - شمکوري - د يو مرض نوم دے -

ـــــ **ګرد**:- (ګَ+ر+د) (ف تر - صف ، مذ ، مو - ه) (۱) د شپې ګرځېدونکے (۲) څوکيدار - د پوليس سپاهي - (۳) غل (۴) سپوږمۍ -

شب ګرد دے چې ئې ډار شي له عسسه
خـونيـان دي چـې ويـره لـه قصاص کا (خوشحال)

ـــــ **ګردي**:- (ګَ+ر+دي) (ف تر - اس - مو) (۱) د شپې ګرځېدنه ، د شپې ګشت ، څوکيداري -(۲) د پوليس ګشت -

ـــــ **ګون**:-(ګو+ن) (ف تر صف ، مذ ، مو - ه) د شپې د رنګ هسې ، تور تور بخن

ـــــ **ګيـر**:-(ګي+ر) (ف تر - صف ، مذ ، مـو - ه) (۱) شب بېدار - شوګير کوونکے - شوګير - (۲) کر ړے چې شپې اوازونه کوي - (۳) يو قسم بلبله چې د شپې چغار کوي - (۴) د شپې اخري وخت - (۵) د شپې په اخر وخت کښې په سفر وتونکے -

چې شبنم غوندې شب ګير په سر ونخلې
لـه ګـل رخ سـره بـه نـۀ شي هم اغوش (حميد)

ـــــ **ګېدل**:-

د کعبې په لار به څۀ رنګې برے کړې
چې هر ګز د يوه شپه شبګير و نۀ کړه (خوشحال)

ـــــ **ګيري**:- (ګي+ري) (اس - مو) شوګيره - د شپې ويښ پاتې کېدنه شپه روڼې -

هغه شمع د هجران په سيلۍ مړه شوه
چې دور کړے ئې تيارۀ د شبګيرۍ ده (حافظ)

ـــــ **معراج**:- (م+ع+را+ج) (عف تر - اس - مو) د معراج شپه - هغـه شپه چې په کښې په حضرت محمد ﷺ معراج شوے وۀ - يعني د خداے پاک سره د ملاقات د پاره د اسمانونو نه بره تر عرشه رسېدلے وۀ - (دا د رجب د مياشتې د شپږو ويشتمې او اوويشتمې تر منځ شپه ګڼلے شي) -

ـــــ **مهتاب**:- (ما+ه+تا+ب) يا (م+ه+تا+ب) (ف تر - مو) د سپوږمۍ شپه - هغه شپه چې د سپوږمۍ په رڼا روښه وي -

ـــــ **نشيني**:- (نَ+شي+ني) (اس - مـو) د شپې ناسته - د شپې په مجلس کښې ناسته

**شب نشيني** :- (د شب نشينۍ جامې - هغـه جامې چې د شپې مجلس کښـې د ناستې په وخت اغوستے شي -

ـــــ **نم**:- (نَ+م) (اس - مذ ، ج - ونه) هغه نمي (نرۍ څاڅکي) کوم چې د سحر په وخت په ونو بوټو وغېره پرېوځي - پرخه - پرشه -

د شبنم غوندې که ترک د رنګ وبو کړې
د خـورشيد پـه ديد به تنه ځاے د تا شي (سعيد خټک)

ـــــ **وروز**:- (شَ+بو+رو+ز) (و---- شاروز)

د عشق د بورے بدنامي کار راکړو
لاس پـه خـولۀ اينبے ژړا کړم شب وروز (حميد)

ـــــ **وصال**:- (و+صا+ل) (ف تر - اس - مو) (۱) هغه شپه چې په کښې څوک بزرګ سړے وفات شوے وي -(۲) خپلې معشوقې سره د يو ځاے کېدو شپه -

ـــــ **وصل**:- (وَ+ص+ل) (و----شب وصال(۲))

ـــــ **يلدا**:-(يَ+ل+دا) (عف تر - اس) د يلدا شپه (يلدا د ژمي) هغې شپې تـه وائي کومه چې ډېره اوږده او يخه وي - دا د دسمبر د مياشتې د درويشتم تاريخ شپه وي -

ـــــ **يماني**:- (يَ+ما+ني) (يَ+مَ+ني) (ع تر - اس - مو) هغه پتکرے (خاورې) چې دښمن په ملک کښې پيدا کېږي - په طب کښې دا ډېره غوره ګڼلے شي -

ـــــ:- (س+ب) (ع - اس) (۱) ځواني - ځوان - (۲) پتکنے - خاورې -

**شباب** :- (شَ+با+ب) (ع ، اس - مـذ ، ج - ونـه) (۱) ځـواني - د زلميتـوب عمـر - (۲) ځوانېدنه - ځوان کېدنه -

ـــــ:- (ش+با+ب) (ف - اس) د موسيقۍ د يوې پردې نوم دے -

**شبا خېل**:- (شَ+با+خېل) (اس مع) د علي خېلو څانګه ده او علي خېـل ، بر رانې زئ ، اکوزئ يوسف زي -

**شباروز** :- (ش+با+رو+ز) (ف تر - صف) شپه او ورځ - شوا روز -

**شباشب** :- (شَ+با+شَ+ب) (ف تر - تف) شواشو - شپه په شپه - په يوه شپه کښې - د شپې په وخت کښې -

**شبان** :- (شَ+با+ن) (ف - اس ، مذ - مو - ه) شپون - ګډ به ، ګډې بزې څروونکے -

**شبانګاه** :- (شَ+با+ن+ګا+ه) (ف تر - اس) د شپې وخت - د شپې په وخت کښې -

**شبانه** :- (شَ+با+نَ) (ف تر - صف مو) (۱) هغـه څيـز چې د شـپې سره تعلق لري - لکه د شپې ډوډۍ ، د شپې اغوستے کېدونکے جامې وغېره - شپې - (۲) د شپې نه پاتې شوے څيز - باسي خوراک شپني - (۳) د شپې راوتونکے - شپيني - (۴) يوه خوش اوازه مرغۍ -

ـــــ **روز**:-(رو+ز) (ف تر - اس - ظرف) د يوې شپې او د يوې ورځې وخت - شوا روز -

**شباني** :- (شَ+با+ني) (ف - اس - مو) د شپون کار کسب - ګډې بزې - څرونه شپون توب -

**شباهت** :- (شَ+با+هَ+ت) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) مشابهت - يو شان والے - هم اهنګي

**ــــ لرل**:- (چا/څهٔ سره) مشابهت لرل - يو شان "بودل" په رنګ شکل قد - جوسه کړهٔ وړهٔ وغيره کښې يو شان والے لرل -

**شبر** :- (شَ+بَ+ر) (اس مع) (۱) د حضرت هارون عليه السلام د يو زوي نوم - (۲) د امام حسين عليه السلام نوم - حضور ص به هغوي په دې نوم بلل -

**شبرے** :- (شَ+بَ+رے) (صف-مذ ، مو-ئ) شبکور - هغه چې د شپې ئې ببخي نظر نهٔ لګي - (جوړ شوے دے خو معنٰی ئې لږه بدله شوې ده) -

**ــــ کېدل**:- شبګوره کېدل - چې د شپې ئې ببخي نظر نهٔ لګي - شمکور کېدل

**شبستان** :- (شَ+ب+س+تا+ن) (ف تر ، اس ، مذ ، ج-ونه) (۱) د شپې د تېرولو ځاے - د خلوت ځاے د وادهٔ کېدو کوټه - (۲) په جومات کښې هغه کوټګې چې د شپې پکښې عبادت کولے شي -

**شبشتے** :- (شَ+ب+ش+تے) (و ــــــ شبشتے)

**شبشے** :- (ش+ب+شے) (ق-اس- مذ) يو قسم خړ رنګې بوټے دے چې د څاروو خوراک دے -

**شبکه** :- (شَ+ب+کَ) (ع-اس-مو ، ج-کې) (۱) د کبانو د نيولو جال - (۲) د بازونو او کونترو نيولو خاص قسم جالګے -

**ــــ دار**:- (دا+ر) (ف تر-صف مذ ، مو-ه) هغه څيز چې جاليدار وي يا سورے سورے وي -

**شبنم** :- (شَ+ب+نَ+م) (ف-اس) (۱) د شپې يا نمي - پرخه - (دا په اصل کښې مقلوب اضافت دے يعني دا په اصل کښې "نيم شپ" وهٔ)-

شبدا خوش په دا ګلشن لکه شبنم شو

د اجل لـه افـتـاب څـرنګ تغافل دے (کاظم خان)

(۲) د ململو يو مهين قسم - (۳) د ځينو زنانهٔ نوم -

**ــــ مشين**:- (مَ+شي+ن) (فپ تر-اس-مذ ، ج-ونه) د زرګرانو د کار يو اله -

**شبو** :- (شَ+ب+بُو) (اس-مذ) د يو ګـل نوم دے چې د شپې ئې هر خواته خوشبوي خورېږي - شوبئ رات کي راني -

**شبه** :- (ش/شَ+بَ) (اس-مو ، ج-شبې) شببه - لږ شان ساعت - لحظه - ګړۍ -

**ــــ په شبه**:- (بَ+ش+بَ) شببه په شببه - ساعت په ساعت ګړۍ په ګړۍ -

**شبه** :- (شَ+بَ+ه) (ف-مو ، ج-شبې) (۱) د تسبيې (تسبيح) يوه دانه - (۲) يو قسم تور کاڼے - سنګ موسٰی -

**شبه** :- (شَ+بَ) (اس-مو ، ج:شببې) نقل ملغلره - شکنه -

له يـا قوته دې هاله سيالي شبه کا

که داور په تاؤ کښې دانه شي بې ابه (خوشحال)

صاف يم کـه ناصاف يم پروت و درته د صراف يم

در شـبـه ښـکاره دي جـوهـري قيمت شناس ته (حافظ)

**شُبه** :- (شُ+بَ+ه) (ف-اس-مو ، ج-شبې) شک - ګمان - بدګماني -

**ــــ پيدا ګېدل**:- شک پېدا کېدل - بدګماني پېدا کېدل -

**ــــ کول**:- شک کول - د يو څيز په اصليت رښتيا والي وغيره کښې شک يا بدګماني کول -

**ــــ کېدل**:- شک کېدل - بدګماني کېدل -

**شبی** :- (ش+ب+ی) (ق-اس-مو) د تبخي پخه ډوډۍ - نغن -

**شَبی** :- (شَ+بَ+ی) (اس-مو) د شُبُّو ګل - رات کي راني -

**شَبے** :- (شَ+بې) (اس-مذ) يو قسم ګياه - چې د څارويو د خوراک ده -

**شبي خېل** :- (شَ+ بي+ خېل) (اس مع) د پښتنو قبيله چې د علي زو سره تعلق لـري علـي زئ محسـود دي - (د شـبي خېلـو څـانګې دا دي بَرومـۍ رکستانۍ ، سلطانۍ ، بي بي زئ ، پستنۍ ، يرداد خېل او خان خېل-

**شبير** :- (شَ+ب+بي+ر) (ع-مذ) (۱) د حضرت هارون عليه السلام د کشر زوے نوم - (۲) حضور ص په حضرت امام حسين عليه السلام په دې نامه باللو -

**شبيل خېل** :- (شَ+بي+ل+خېل) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د عمر خېلو وړوکې څانګه ده او عمر خېل ، انائي ، بـډې زخاخېل افريدي دي - (په بله شجره کښې دا نوم صاحب خېل ليکلے دے او همدا درست ښکاري (مدير)

**شبينه** :- (شَ+بي+نَ) (ف-صف) (۱) د شپې - د شپې سره تعلق لرونکے شپئيز - (۲) د شپې نه پاتې شوے - باسي -

**شبيهه** :- (شَ+بي+ه) (ع-اس مذ) تصوير - نظير - صورت -

**ــــ جزيره**:- (جَ+زي+رَ) (اس-مو ، ج-رې) جزيره نماۍ - هغه علاقه يا ملک چې درې طرف ته ئې اوبهٔ وي او څلورم طرف ئې وچه وي -

**شبيه جوړول** :- تصوير جوړول - صورت جوړول -

**شپ** :- (ش+پ) (ق-اس-مذ ، ج-ونه) ډوغل - لوے ډوغل -

**ــــ**:- (شَ+پ) (ق-اس-مذ ، ج-ونه) سره پناه - د ناستي ځاے -

**ــــ**:- (شَ+پ) (تابع مهمل) دا لفظ "ګپ" سره يو ځاے راځي او ددې په معنٰی کښې زور او تاکيد پېدا کوي - يعني ګپ شپ -

**ــــ**:- (ش+پ) [انګ-اس-مذ] سمندري جهاز - د اوبو جهاز -

**ــــ يارډ** :- (+يا+ر+ډ) (انګ تر-اس-مذ-ج-ونه) د جهازونو د جوړولو کارخانه -

**شپاړس** :- (ش+پا+ړ+س) (اس عدد) لس او شپږ - پنځلس او يو - (فارسي: شانزده اردو: سوله) -

**شپاړسم** :- (ش+پا+ړَ+س+م) (اس عدد مذ ، مو-ه) په درجه د پينځلسو نه پس راتلونکي درجه - (فارسي: شانزدهم - اردو: سولهوا) -

**شپاله** :- (ش+پا+لَ) (اس-مو ، ج-لې) (۱) هغه ځاے چې شپول ترې چاپېره کړي وي - په اغزو غنو راګېره شوې احاطه - (۲) هغه ځاے چې ګډې بزې په کښې د شپې ساتلے شي (ددې نه هم د ازغنو غنو شپول چاپېره وي) -

**شپانهٔ** :- (ش+پا+ن) (اس-ج) د "شپون" جمع ده - د ګډو څـرووونکے ګډبـه - پـه ځنومرکباتو کښې راځي - (مثالونه وړاندې راځي) -

**ــــ بنۍ**:- (بَ+بَ+ی) (ق-اس-مو) د ريښمو د چينجي د غوزې په شان يو پوست غونډارے چې ځنګلي بوټو يا ازغو سره ښتے وي -

**ــــ پنډے**:- (پَ+ن+ډے) (ق-اس-مذ) يو قسم سماروق په شان بوټے دے پوسکے - پرپره - خرمېرے -

**ــــ پونډۍ**:- (پُو+ن+ډَ+ی) (ق-اس-مو) يو قسم کهے - د کهي بوټے چې بند بند وي او قلمونه ترې جوړولے شي -

**ــــ غود**:- (غـو+د) (ق ، اس-مذ) يـوه د بـاخـے همـره مرغـۍ ده - پـه زمکـه کښيني او چې څوک بني ادم ئې اوويني نو داسې ناسته کوي - لکه چې الوتې نهٔ شي - ځکه ورته فارسۍ کښې "شبان فريب" هم وائي - سپينه غود - شپن غود - بچه غلانک - (وزيري : سپندوغه)

**شپرا** :- (شَ+پ+را) (اس-مذ) غټ رنبے - د ترکاڼانو يو اوزار -

**شپرک** :- (شَ+پ+پَ+رَ+ک) (ف-اس-مذ) ښاپېرک - مابنام څکاله (اصلاً دا لفظ "شب پرک" وهٔ - يعني دشپې الوتونکے) -

**شــپيره** :- (ش+پ+رَ) (ق-اس-مـو-ج-ې) يـو الـه چـې موچيـان او پېـزر ګنډونکے ئې استعمالوي -

**شپره** :- (شَ+پ+پَ+رَ) ــــــــــــــــــــــــــ

**شپر** :- (شَ+پ+پَ+ر) (و ــــ شپرک)

**شپيره** :- (شَ+پ+رَ) [ق-اس-مؤ] يـو قسم ګيـاه چې وړې وړې پـاڼې ئې وي -

صحرای خلق ئې د اوږو سره ګډوي -

**شپږ** :- (ش+پَ+ږ) (اس-مذ ، مو-ه) هغه سړے چې په پنجه کښې شپږ ګوتې لري-شپږ ګوتيزے-

ـــــ:- (شَ+پ+ږ) (صف-مذ ، مو-ه) شپاړ-شپاړ شپاړ-جټ غېره مهذب ګوار چې د کار يا د جامو وغېره د صفائی خيال نهٔ ساتي-

**شپږ** :- (ش+پَ+ګ/ږ) (اس عدد) (۱) پينځه او يو څلور او دوه-(فارسي شش، اردو: چه)- (۲) (بازاري) د کنځلو په طور چاته وئيلے شي-داؤس-دله-

ـــــ **تو**:- (تَ+و) [ق-اس-مذ] (۱) حېران-ارمان- (۲) د شطرنج تخته-

ـــــ **جهته**:- شپږ لوريه-څلور طرفه اوور سره ښکته او پورته-مراد ترې هر طرف ، هر لحاظ سره-

ښائسته په شش جهته
هر اندام جدا جدا ښهٔ؛ (خوشحال)

ـــــ **څنډے**:- (ت)س+ن+ډ+ے) (۱) هغه څيز چې شپږ ګوټه نه لري-شپږ ګوتيز- (۲) هغه چې شپږ ګوټونه لري-شپږ ګوتيز- (۳) مسدس (شکل)-

ـــــ **څنډيز**:- (ت)س+ن+ډي+ز) (و---شپږ څنډے)

ـــــ **ډزي**:-(ډَ+زي) (۱) د اَرتي تماچې يو مشهور قسم چې شپږ کالتو سونه په کښې کښېښووے شي-څکه په يو ځل ډکولو، شپږ ډزه کوي-ريوالور - (۲) شپږ ډزے ټوپک-

ـــــ **کروهي**:- (ک+رو+هي) (پ تر - اس) د شپږو کروهونو فاصله-د يو ځاے (ښار وغېره) نه چاپېر تر شپږو کروهه پورې علاقه ، لکه د ښار په شپږ کروهي کښې-

ـــــ **ګټيز**:-(ګ/ګو+تي+ز) (صف مذ ، مو-ه)د سطحې هغه شکل چې شپږ ګوټونه لري-مسدسي-

ـــــ **ګوتې**:- هغه څوک چې د پينځو په ځاے ئې شپږ ګوتې وي-

دے د خپلې ګوتې غم کاندي که نهٔ وي
پـه شګون کښې عالم ښهٔ ګڼي شپږ ګوتې (خوشحال)

ـــــ **ګوټيځ**:- (و--- شپږ ګټيز)

ـــــ **منځيځ**:- (مَ+ن+(د)زي+(د)+ز) (رق-اس-مذ ، ج-ونه) مکعب-هغه جسم چې شپږ سطحې وي-

ـــــ **مياشتينزه**:- (م+يا+ش+تي+زَ) (اس ظرف مو ، ج-زې) ششماهي-هغه کار يا څيز چې شپږ مياشتې پس کولے شي-لکه شپږ مياشتينزه مجله-

ـــــ **مياشتينۍ**:- (م+يا+ش+ت/تي+نَ+ۍ)(و--- شپږ مياشتيزه)

ـــــ **ويشت**:- (وي+ش+ت) (اس عدد) شل او شپږ- (فارسي: بست وشش: اردو ، چهبيس)- (په نورو اعدادو کښې شپږه-سره د دهاي هنده پوره راځي-بلکې شپږ څلوېښت-شپږ پنځوس وغېره)-

**شپږم** :- (ش+پَ+ګ/ږ+م) (اس عدد ، مذ-مؤ-ه) د شمېر د ترتيب په لحاظ سره د پينځم نه پس راتلونکې- (فارسي: پنجم)-

**شپږن/سپږن** :- (ش+پ+ګ+ن) (صف ، مذ ، مو-ه) (۱) هغه سړے چې په بدن يا جامو کښې ئې ډېرې سپږې وي-سپږن-(۲) مجازاً هغه سړے چې د بدن او د جامو صفائی نهٔ کوي-

**شپږه** :- (ش+پ+ګَ/ژَ) (اس-مو ، ج-ې) سپږه-(فارسي: شپش)-

**شپږی** :- (ش+پ+ګ/ژَ) (اس-مو) د غنمو هغه چينجے چې د سپږې په شان وي-سپږې

**شپږيش** :- (ش+پَ+ګي/ژي+ش)د شپږ ويشت مخفف دے-(و--- شپږويشت)

**شپږيشت** :-(ش+پَ+ګي/ژي+ش+ت) د شپږويشت مخفف دے-(و--- شپږويشت)-

**شپش** :- (شُ+پُ+ش) (ف-اس مذ) سپږه-

**شپ شپ** :- (شَ+پ+شَ+پ) (اس مذ) دا لفظ اصلاً "شف شف" مفغن شکل دے-په معنٰی کښې د انې بانې-

ـــــ **کول**:-(۱) صفا خبره نه کول-ګول مول خبره کول (۲) انې بانې کول- (شف شف (نيمګړے لفظ) وئيل او (پوره لفظ "شفتالو" نه وئيل پوره مطلب نهٔ بيانول-

**شپشتي** :- (ش+پ+ش+تي) (اس-مو) د يوې لوبې نوم دے-

**شپشتے** :- (ش+پ+ش+تے) (اس-مذ ، ج-تي) رشکه-مشهوره ګياه چې د څاروو د خوراک د پاره کرلے شي-

**شپګ** :- (ش+پَ+ګ) (و---شپږ) ----

**شپګم** :- (ش+پَ+ګ+م) (و---شپږم) ----

**شپلکي خېل** :- (ش+پَ+ل+کي+خېل) (اس مع) د پښتنو قبيله (چې ياول خېل هم ورته وائي) دا د زرغون خېلو يوه څانګه ده او زرغون خېل، کلے، ادم خېل افريدي دي-(زماني خېل د شپلکي خېلو يوه څانګه ده)-

**شپلني** :- (ش+پ+لَ+ني) [اس-مذ-ج] (و--- سپيلنے)

ـــــ **کېدل**:- قربانېدل-

که خوبان دې له خوبۍ لبوني شوۀ
سـر و مـال ځـني زما شه شپلني (حميد)

**شپنغود** :-(ش+پ+ن+غو+د) [اس-مذ] (و--- شپانه غود)

**شپنکۍ** :- (ش+پ+ن+کَ+ۍ) (اس-مو) د "سپنکے" تانيث دے-هغه جينۍ يا ښځه چې ګډې بزې څروي-

**شپنکے** :- (ش+پ+ن+کے) (اس-مذ ، ج-کي) د "شپون" تصغير دے څو عموماً د شپون په معنٰی کښې راځي-هغه کس چې ګډې بزې څروي-ګډبه-

**شنه** :- (ش+پَ+نَ) (اس-مو ، ج-نې) (۱) د شپون تانيث- (۲) د ګياه يو قسم-چې پاڼې ئې نرمې او خوند ئې خوږ وي-(ق)-

**شپني** :- (ش+پ+ني) (اس-مو) د شپون پېشه-د شپون کار-شپونتوب-

ـــــ **کول**:- د شپون کار يا پېشه لرل-ګډې بزې څرول-

**شپني** :- (ش+پَ+ني) (صف-مذ ، مو-شپنۍ) (۱) هغه کار يا څيز چې د شپې سره تعلق لري-شبينه-لکه شبينې مجلس-(۲) هغه څيز چې د تېرې شپې نه پاتې شوے وي-باسي-

ـــــ:- (ش+پَ+ني) (اس-ج-مو) د شپنه جمع -

**شپو** :- (ش+پو) د "شپې" جمع اضافي يا مجروري حالت-لکه د شپو مزل-

**په تورو ـــــ کښې**:- په هغه شپو کښې چې د سپوږمۍ رڼا په کښې نهٔ وي-

**د ـــــ نه يوه شپه وه**:- دا جمله عموماً په قيصو يا سرګزشت وغېره د بيان په موقع وي يعني يوه شپه وه چې يقين ئې نهٔ شي کېدے-

**شپوږی** :- (ش+پو+ګ/ژَ+ۍ) (اس-مو) سپږۍ چې په غله خصوصاً غنمو کښې پيدا کېږي-

**شپول** :- (ش+پو+ل) (اس-مذ ، ج-ونه) (۱) حلقه-دائره-(۲) هغه سپينه دائره چې د سپوږمۍ نه چاپېره ښکاري-(۳) احاطه-د کوم ځاے نه څلور چاپېره د ازغنو وچو څانګو او غنو منو بنديز جوړ شوے وي-

ـــــ **اچول**:- شپول جوړول-د ځان نه حلقه چاپېره کول-لکه سپوږمۍ شپول اچولے دے-

ـــــ **ترل**:-د کوم ځاے نه څلور چاپېره د ازغنو وچو څانګو او د غنومنو نه حدبندي چاپېره کول-بارټرل(وزيري: وبرهٔ ترل)-

ـــــ **جوړول**:- (و---- شپول ترل)

ـــــ **جوړېدل**:- د سپوږمۍ نه چار چاپېره د رڼا يوه حلقه جوړېدل-

ـــــ **چاپېرېده کول**:- د غنو منو احاطه چاپېر جوړېدل-کچه احاطه بندي کول-

شپول ترل۔

در چارپېر که مضبوط شپول د باور نۀ وي

چــارپایان بـــــه دې لتاړ که شبیل کښت ئې　　　(حافظ)

ـــــ **غالے**:۔(غا+لے) (اس۔مذ ، ج۔لي) هغه احاطه چې شپول ترې چاپېره جوړ شوے وي او ګډې بزې په کښې د شپې جمع کولے شي۔ګاج۔ګاش۔

**شپون** :۔ (ش+پُو+ن) (اس۔مذ ، ج۔شپانه) د ګډو بزو ساتونکے او څروونکے ، ګډبه۔

ـــــ **توب**:۔ تو+ب) د شپون پېشه۔د ګډو بزو د څرولو کار کسب۔

ـــــ **غالے**:۔(غا+لے) (اس۔مذ ، ج۔لي) پنډغالے۔هغه ځاے چې ګډې بزې په کښې د شپې راجمع کولے شي۔

**شپوڼاکه** :۔ (ش+پُو+ن+ړا+کَ) (ق اس۔مو ، ج۔کے) د ټوکي یا د جامې هغه ځائ چې د زوروالي له کبله شلېدلے یا وتے وي۔

ـــــ **کېدل**:۔ د جامې یا د ټوکي د زوړ والي له کبله ورستېدل یا شلېدل۔

**شپونکے** :۔ (ش+پُو+ن+کَے) [اس۔مذ۔ج: کي] د شپون اسم تصغیر۔

**شپه** :۔ (ش+پ+(ه) [ق۔اس۔مذ] شپون۔ګډبه۔

ـــــ **کول**:۔شپون مقررول کېدل۔شپون کېدل۔هله به دې زده شي چې ---------، ۔

**شپون نیول** :۔ شپون مقررول۔چوپان مقررول۔

**شپه** :۔ (ش+پَ)(اس۔مو ، ج۔شپې) د ورځ ضد۔شب۔(اردو:رات)۔

ـــــ **او ورځ**:۔ (اَ+و+و+رَ+(د)+ز) هم د شپې وخت او هم د ورځې وخت۔ټول وخت۔هر وخت۔مدام۔

یــوه ورځ بـــه بـندیــوان د بــاز پــــه ځـېر شي

چې دې شپه او ورځ خــوراک شو د قام غوبنې　　　(حمید)

ـــــ **او ورځ په ځان یو کول**:۔ کنایه: متواتر او ډېر سخت کار ، محنت مشقت کول

ـــــ **په سترګو کښې تېرول**:۔ درسته شپه ویښ اوسېدل۔

ـــــ **په سر اخیستل**:۔ درسته شپه ویښ　　پاتې کېدل۔(خصوصاً چې نور خلق هم د ځان سره په تکلیف کښې اچول )

ـــــ **په شپه**:۔ (پَ+ش+پَ) د شپې په وخت کښې۔د شپې تېرولو نه ورانده دې۔(لکه:هغه شپه په شپه وتښتېد)۔

ـــــ **تر مېنځه "بودل"**:۔ هغه واقعه یا پېښه چې د شپې د تېرولو نه پس یعني سباله پېښېدونکې وي۔یعني د یوې شپې وقفه پکښې موجوده وي۔متل چې د هغه بلا نه مه ویرېږه چې شپه ئې تر مېنځه وي۔

ـــــ **تېرول**:۔شپه اړول۔د شپې د چا د کټ پوزے استعمالول۔مطلب تر سره کول۔لکه شپه تېروم ، حجره دې غېم (متل)

ـــــ **تېرول**، حجره غوول:۔ مطلب تر سره کول۔

ـــــ **خوړول**:۔ د چا سره په ویښه شپه تېرول۔

ـــــ **روڼول**:۔ درسته شپه ویښه تېرول۔ټوله شپه ویښ پاتې کېدل۔

مخ بــه ئې روڼوي پــه قـیامت کښې له افتابه

چې شپه ئې روڼــه کـــړه ، سحر قاري قران ته راغے　　　(حافظ)

ـــــ **روڼے**:۔ (رُو+ن+ړے) شپه روڼونه۔د شپې ویښ پاتې کېدنه۔

ـــــ **روڼے**:۔ (رُو+ن+ړے+) (اس۔مذ ، ج۔ي) هغه کس چې درسته شپه رڼوي۔درسته شپه ویښ پاتې کېدونکے۔شب بېدار۔

ـــــ **ړوندے**:۔ (ړو+ن+دے) (اس۔مذ ، ج۔ي) هغه کس چې د شپې ئې نظر نۀ لګي شبکور ، شمکور۔

ـــــ **ړونـدے**:۔ (ړو+ن+دے) (اس۔مـذ ج۔ي) د شـبکوري مـرض۔شـبکوري۔شمکوري

ـــــ **غمېدل**:۔ د څۀ غم یا فکر په وجه شپه روڼول او خوب نۀ ورتلل۔

ـــــ **کول**:۔(۱) چا سره شپه تېرول۔چا سره د شپې پاتې کېدل۔لکه نن شپه مونږ سره اوکړه۔(۲) په څۀ کار کښې دومره وخت تېرول چې شپه پرې راشي۔

ـــــ **ورځ کېدل**:۔ تکلیف یا مصیبت تېرېدل۔خوشحالي تېرېدل۔

ورځ بــه نـۀ شي د غم شپه پـه هغو خلقو

چې په باب ئې بد دعا کړه هر سحار خولے　　　(حمید)

ـــــ **وهل**:۔　شپه پـه سر اخیستـل۔درسته شپه بېدار اوسېدل۔درسته شپه خوب　　نۀ کول۔

ـــــ **انډول په انډول کېدل**:۔ د وادۀ نه پس بښځې سره څملاستل۔هله بـه خبر شي چې انډول په انډول دې شپه شي (متل)۔

ـــــ **تیارۀ**:۔ توره شپه۔هغه شپه چې په کښې د شپوږمۍ وغېره رڼا نۀ وي۔که شپه تیارۀ ده خو مانې په شماردي۔(متل)

ـــــ **درسته**:۔ (د+ر+س+تَ) ټوله شپه۔درسته شپه۔

**رڼا شپه ـــــ کېدل**:۔ بدقسمتي راتلـل۔سـخت تکلیـف یـا مصـیبت کښـې ګرځېدل .

ـــــ **کړۍ**:۔　(کَ+ړَ+ی) ټوله شپه ، درسته شپه۔تمامه شپه۔

**شـپې** :۔ (ش+پـې) (اس۔ج) (۱) د "شـپه" جمـع ده۔ (۲) د "شـپه" اضـافي یـا مجروري　شکل دے۔

ـــــ **اخیستل**:۔ د شپې پـه تیارۀ کښې ، پـه سفر کښې لاړ خطا کېدل او روان اوسېدل۔

ـــــ **او ورځې**:۔ (اَ+و+و+رَ+(د) زې) د شپه او ورځ جمع ده۔ډېرې شپې۔

ـــــ **او ورځې**:۔ هر وخت۔مدام۔

ـــــ **او ورځې اړول**:۔ (و-----شپې او ورځې تېرېدل) کله کله ورسره د "عمر" الفاظ هم په طور د تصریح وئیلے شي۔لکه بس د عمر شپې ورځې آړووۀ۔

ـــــ **او ورځې تېرېدې**:۔ وخت اوړېدۀ۔وخت تېرېدۀ۔عموماً د قیصو د بیـان پـه وخت وئیلے شي چې د بیان شوې واقعې نه پس وخت۔ اوړېدۀ یـا ډېـره موده پرې　تېره شوه۔

ـــــ **اورځـې تېـرول**:۔ د عمـر وخت اړول۔عمـر پـوره کـول (خصوصـاً پـه غېـر دلچسپۍ یا د تکلیف د څرګندولو په موقع وئیلے شي )۔

ـــــ **ته ورځ وئیل**:۔ ښکاره دروغ وئیل۔اړولې خبرې کول۔

**د ـــــ ځاے**:۔ (د) زا+ئے ) د شپې د تېرولو ځاے۔

ـــــ **زو**:۔ (ز+ر) (ق۔اس۔مذ) د شپې اخیرنۍ حصه۔

ـــــ **ورځې**:۔ (و+رَ+(د)+زې)　　(اس۔ظرف) د شپواو د ورځو وخت۔

ـــــ **ورځې اړول**:۔ د شپې او د ورځې وخت تېرول۔د عمر وخت تېرول۔وخت اړول۔د عمر وخت کښې دلچسپي نۀ لرل۔

ـــــ **ورځې تېرول**:۔ (و---شپې ورځې اړول )

ـــــ **ورځې تېرېدې**:۔ (عموماً په قصو کښې وئیلے کېږي چې په دغه واقعه چې بیان شوه۔ډېر وخت واوړېدو۔

**د ـــــ او دورځې**:۔ (اَ+و+و+رَ+(د)+زې) ټوله شپه او ټوله ورځ۔هم د شپې او هم د ورځې۔

**د ـــــ تو**:۔ د شپې د تېرولو ځاے۔شب ګزر۔

**د ـــــ ورکه ستن**:۔ د شپې په تیارۀ کښې ورکه شوې ستن چې موندل ئې ګران وي۔مجازاً هر هغه کار یا څیز چې حصول یا موندل ئې ناشونے وي۔

د فــراق پــه شپه امید د وصـال څۀ دے

که ئې ګوري په معنٰی کښې ورکه ستن شپه　　　(خوشحال)

**د ـــــ عمر ورځې شمېرل**:۔ د عمر ورځې شمېل۔عمر اړول۔د عمر وخت تېرول۔(عموماً د خراب ژوند په حقله وئیلے شي)۔

**ورځ ته ورځ او ـــــ ته شپه وئیل**:۔ کنایتًه: ورځ او شپه متواتر په کار کښې بوخت

اوسېدل - ورځ او شپه محنت مشقت یا څهٔ کار کښې لګیا اوسېدل -

**شپیانګه** :- (ش+پ+یا+ګَ) (ق - اس - مو ، ج - ګې) یو قسم بوټے دے چې خړ رنګې دانې کوې چې د ګیډې د درد د پاره پکارولے شي شاپیانګه - خپیانګه -

**شپیانه** :- (ش+پ+یا+نَ) (ق - اس - مو ، ج - نې) (۱) شرم خجالت - ملامتـه - (۲) زور زیاتے

**ـــــ اړول**:- شرمنده کول - ملامته کول -

**ـــــ**:- (شَ+پ+یا+نَ) (اس - مذ ، ج - نې) ظلم - جور - ناتار - تاړاک -

**ـــــ کول**:- ظلم کول - ستم کول - زور زیاتے کول -

**شپیترے** :- (ش+پي+تَ+رے) (اس - مذ ، ج - ي) پیشترے - د پیشتري ساګ - بېچلره - شپشتره - رخنک -

**شپیتم** :- (ش+پي+ت+م) (اس - عدد) مذ ، مو : ه) هغه څیز وغیره چې په پره کښې د نهه پنځوس نه پس ته راځي - (ف ، ستصم ، اردو : ساټهوي) -

**شپیتو** :- (ش+پي+تو) د "شپیتهٔ" اضافي او مجروري وغیره شکل دے -

**د ـــــ زامنو پلار**:- د ګڼو یا ډېرو زامنو پلار - مجازاً د ډېر عمر -

که د شپیتو زامنو پلار ئې
زما به طمع د یارۍ درځیني وینه (تپه)

**شپیتهٔ** :- (ش+پي+ت) (اس عدد) درې شلې - پنځوس اولس - (فارسي : شصت، اردو : ساټ) -

**ـــــ**:- (ش+پـي+تَ) (اس - مـذ ، ج - تـي) (۱) پانـهٔ - شپېشـتې - سـپېښتې - (۲) شکنجه -

**ـــــ کول**:- (۱) شکنجه کول - (۲) په تکلیف کښې اچول -

**شپیتی** :- (ش+پي+تَ+ی) [اس - مؤ] (وـــ شپیتهٔ)

**شپیځاے** :- (ش+پي+(د)+زا+ئے)

**شپیځئے** :- (ش+پي+(د)+زَے) (پ تر - مذ ، ج - ونه) د شپې د تېرولو ځاے -

**شپیرکے** :- (ش+پي+ر+کے) [اس - مذ] (وـــ شپېلکے)

**شپیړن** :- (ش+پي+ړ+ن) (صف مذ ، مو - ه) بدبویه - بوي ناک -

**شپیړنه** :- (ش+پي+ړ+نَ) (صف - مؤ ، ج - نې) هر هغه څیز چې بدبوي ترې ځي خصوصاً بدبویه ښځه -

**شپیړه** :- (ش+پي+ړَ) (اس - مو ، ج - ړې) بدبوي د بني ادم د بدن بدبوي د ترخ بدبوي

**شپیزر** :- (ش+پي+زَ+ر) (ق اس - مذ) (۱) د شپې د اخرینۍ برخې نیمه - (۲) د نیمې شپې نه وروستو درمې څرولو وار -

**شپیشترے** :- (ش+پي+ش+ت+رے) (اس - مذ ، ج - ري) شپېشتے - یو قسم ساګ -

**شپیشتکه** :- (ش+پي+ش+ت+کَ) (اس - مو ، ج - کې) (وـــ شپیشتکه)

**شپیشتلکه** :- (ش+پي+ش+ت+لَ+کَ) (اس - مو ، ج - کې) یو قسم خود رو رشقه ده چې د غنمو په پټي کښې پیدا کېږي - زېړ ګلونه کوي -

**شپیشتو** :- (ش+پي+ش+تو) د "شپېشتې" اضافي یا مجروري وغیره شکل

**د ـــــ پر ښاخ خېږول**:- د رشقې په څانګه پورته کول - مجازاً مخامخ تعریفونه کول چې ورله دوکه ورکړي - کونه غوړول -

**شپیشتے** :- (ش+پي+ش+تے) (اس مذ ، ج - تي) رشقه ، رشکه - ګیاه ده - چې کرلے شي - نیلي رنګ ګل کوي - او څاروو خوراک دے -

**ـــــ**:- (ش+پي+ش+تے) (ق اس - مذ) د څرخ پره او دندانه (غانښے) -

**شپیلغے** :- (ش+پي+ل+غے) (ق ، اس - مذ ، ج - غمي) یوه صحراي مرغۍ ده -

**شپیلغے** :- (ش+پي+لَ+غے) (اس - مذ ، ج - غي) شبکور چې د شپې ئې نظر نهٔ لګي - شمکور -

**شپیلک** :- (ش+پي+لَ+ک) (اس - مذ ، ج - ونه/ان) (۱) د خولې شپېلۍ - (۲) د غړولو شپېلۍ (اردو : سیټي) -

**شپیلک کول** :- د خولې شپېلۍ وهل -

**ـــــ وهل**:- د خولې شپېلۍ غړول - د غړول - د دواړو - شونډو په غونډولو اواز ویستل -

**شپیلکے** :- (ش+پي+ل+کے) (اس - مذ ، ج - کي) شپېلے - شپېلکے - د شونډو نه ایستلے اواز - (شپېلکي هم وائي) -

**شپیلکے/شپیلکي کول** :- (وـــ شپېلکے وهل)

**ـــــ وهل**:- **شپیلے وهل** - د شونډو په راغونډولو تېرهٔ غوندې اواز ایستل -

**شپیلل** :- (ش+پي+ل+ل) (مص) د خوراک څهٔ څیز د ساه په ذریعه خوله کښې رابنکل / راکښل او خوړل -

**ـــــ پاک**:- څهٔ څیز ببخي خوړل - په خوړلو خلاصول -

**ـــــ سرې**:- کنایه - د چا ټول مال خوړل -

**شپیل مال** :- (ش+پي+ل+ما+ار) (اس فا - مذ ، ج - ان ، مو - ه) شپېلے غړونکے -

غـړوي مې د هجران پـه شپو بـې راه
ستا د مینې شپېملار سورے نله کړم (حسین)

**شپیلندر** :- (ش+پي+لَ+ن+د+ر) (اس - مذ ، مو - ه) شبکور - چې د شپې ورتـه څهٔ نهٔ ښکاري -

**شپیلندو** :- (ش+پي+لَ+ن+دُو) (اس - مذ) شپېلے غړوونکے - شپېلي مار - نې نواز -

**شپیلول** :- (ش+ پي+ لَ + ؤ + ل) (مص) (وـــ شپېلل)

**شپیلی** :- (ش+پي+لَ+ی) (اس - مو) (۱) مشهور ساز چې عموماً د بانس نه جوړولے شي - (فارسي - نے ، اردو : بانسري) - (۲) د ټوپک نالۍ - (۳) د غوږ سورے - (ق) - (۴) د ژرندې (جرندې) توتکه (ق) -

**ـــــ داسرافیل**:- هغه شپېلۍ چې اسرافیل علیه السلام به ئې د قیامت په ورځ غړوي - قران پاک کښې نوم صور راغلے دے -

بیا به ئې پاسوي مولی د اسرافیل په شپېلۍ
د حشر نشر ورځ راتلونکے په رښتیا وګڼه (حافظ)

**ـــــ وهل**:- شپېلۍ غړول - نې غړول -

**ـــــ**:- (ش+پي+لَ+ی) (اس - مو) د زرګرانو یوه الـه چې اور پرې پوکي او تازه کوي -

**شپیلے** :- (ش+پي+لَے) (اس - مذ ، ج - لي) د خولې نه خاص قسم تېرهٔ اواز ایستل د خولې شپېلۍ لکه ترے (اس) شپېلے نه غواړي او اوږے (سړے) - ست نه غواړي (متل) -

**ـــــ وهل**:- د شونډو په ذریعه یو خاص قسم تېرهٔ اواز ایستل (اردو : سیټي) -

**ـــــ وهل (چاته)** :- (۱) چاته د (خولې د) شپېلۍ په ذریعه اشارت کول - (۲) اس یا اسونو ته د اوبو څښلو په وخت شپېلۍ وهل - (اسونو ته اوبه ورکول په وخت (د خولې) شپېلۍ وهلے شي -

**هم ـــــ وهل او هم ستوان خوړل**:- داسې دوه متضاد کارونه کول چې په یو ځاے دواړه نه کېږي - مجازاً نا ممکن کار کول -

**شپیلی** :- (ش+پي+لي) (اس ج -) د "شپېلے" جمع - ډېر شپېلۍ -

**دلوړې ـــــ وهل**:- ډېر زیات اوږے کېدل - ډېر زیاتې لوږې په مخه کول -

**شپیلي مار** :- (ش+پي+لي+ما+ر) د شپېلۍ غړوونکے - د شپېلۍ (ساز) د غړولو ماهر -

**شپینے** :- (ش+پي+نَے) (صف مذ ، مو - ې) (۱) د شپې سره تعلق لرونکے - شپنے - شبینه لکه شپېنۍ خبره - (۲) د شپې نه پاتې شوے - باسي -

**شت** :- (ش+ت) (اس صوت مذ) تیزۍ سره د تېرېدلو یا زغلېدلو اواز -

**ـــــ کول**:- (وـــ شت ول)

ـــــ **وهل**:- تېزي سره منډه کول - سور خلاصېدل.

**د پخوا او ـــــ اخوا**:- (د ے+خ+وا+أو+=ا+خ+وا) ډېرې تېزۍ سره کله يو طرف ته او کله بل طرف ته زغلېدنه -

ـــــ:- (شَ+ت) (ق - اس - مذ) د قرعه اندازي (هسک ايستلو) يو قسم دے چې هلکان د لاس د ګوتو په نښانو لګولو راوباسي - په دې کښې هرې ګوتې د پاره يو نوم مقرر کړې وي - شورک -

ـــــ **وهل**:- (ق) د هلکانو د ګوتو د نښانو په ذريعه قرعه اندازي کول -

ـــــ **ويشتل**:- (ق) (و----شت وهل)

ـــــ:- (ش+تَ) (سابقه) د شته مخفف دے - د نورو الفاظو نه وړاندې راوستے شي - د شته يعني د دولت او مال معنیٰ ورکوي -

**شتا** :- (ش+تا) (ع - اس) ژمے (جمې) د يخنۍ موسم -

ـــــ:- (شَ+تا) (ق - صف) (۱) بې حيا - شرارتي - وران کارے - (۲) چالاک - مکار - (ظ) -

ـــــ **توب**:- (تو+ب) (۱) بې حيائي - شرارت - وران کاري - (۲) مکاري - چالاکي (ظ) -

ـــــ **والے**:- (وا+لے) (۱) بې حيائي - شرارت - وران کاري (ق) (۲) چالاکي - مکاري - (ظ)

**شتاب** :- (ش+تا+ب) (ف - ظ) زر - تېز - فوراً - په تادۍ سره -

زۀ ددې دنيا نه تلونے په شتاب يم
لکه پاڼه د خزان ښيه په رکاب يم (رحمٰن بابا)

ـــــ **کول**:- تادي کول - تعجل کول - بيړه کول - تُندي کول -

**په ـــــ (تلل) راتلل (وغيره)** :- په تادۍ سره تلل - په عجلت يا په جلتي تندي تلل -

زۀ چې هسې په تعجل او په شتاب ځم (خوشحال)

**شتابان** :- (ش+تا+با+ن) (ف - ص ، مذ ، مو - ه) په تادۍ سره - زر زر - تېزۍ سره په تېزه منډه - ، بيړوند ، په تېز زغل -

**شتابنده** :- (ش+تا+ب+ن+دَ) (ف - اس نا) (۱) تادي کوونکے - بيړه کوونکے - (۲) منډه وهونکے - بيړوندوک ، زغلېدونکے - (۲) مجازاً - کوښښ او سعي کوونکے -

**شتابي** :- (ش+ تا+بي) (ف - اس - مو) تادي - تندي - جلتي - بيړه -

ـــــ **کول**:- جلتي کول - تُندي کول - تادي کول - بيړه کول -

لکه برق د خار د حسن پيا بولی
هست وبود ته شتابي کوي نابود (حميد)

**شتامبۍ** :- (ش+ تا+م+ بَ+ ی) (ق - اس - مو) د کاني لنګړی -

**شتاوه** :- (شَ+تا+وَ) (اس - مو ، ج - وے) (۱) بدکاره - بدچلنده ښځه - (۲) ډمه - فاحشه -

**شتاه** :- (شَ+تا+ه) (و----شَتا) ---------

**شتاه** :- (شَ+تا+هَ) (و----شتاوه) ---------

**شتائي** :- (شَ+تا+ئي) (اس - مو) (۱) بې حيائي - شرارت - وران کاري (ق) - (۲) چالاکي - اداکاري - (ظ) -

ـــــ **کول**:- (۱) بې حيائي کول - ورانے کول - وران کاري کول - (۲) چالاکي کول - مکاري کول -

**شتايه** :- (شَ+تا+يَ) (و----شتاوه) ---------

**شتر** :- (شُ/شو+ت+ر) (ف - اس - مذ ، ج - ان) اوښ - مشهور ځناور -

يا عراقي اس شان مې راتب خورے په سوري
يا لکه شتر په زوز راضي بارش روان دے (حافظ)

ـــــ **بان**:- (با+ن) (ف تر - مذ ، ج - ان ، مو - ه) د اوښ يا د اوښانو ساتوونکے ، اوښ به-

ـــــ **باني**:- (با+ني) (اس - مو) د اوښانو د ساتنې پيشه - اوښبه توب -

ـــــ **بې مهار** (ـــــ بې+مُ+ها+ر) هغه اوښ چې مهار نۀ لري - ازاد - مجازاً هغه سړے چې هېڅ پابندي او بنديز پرې نۀ وي چې کوم خواته تلے وي - خوشے - بې سره - اواره

ـــــ **خانه**:- (خا+نَ) (ف تر - اس مو ، ج - نې) د اوښانو د ساتنې ځاے -

ـــــ **خوي**:- (خُو+ي) (ف تر - صف - مذ ، مو - ه) د اوښانو په شان خوي لرونکے - کينه ور بُغضي -

ـــــ **دل**:- (د+ل) (ف - تر - صف مذ ، مو - ه) د اوښ په شان زړۀ لرونکے - مجازاً ويريندوکے - بزدله - [اوښ بزدل نۀ وي ، مګر کينه د اوښ ، محاوره ده ]

ـــــ **سوار**:- (سَ+وا+ر) (ف تر - صف ، مذ - مو - ه) په اوښ سوربدونکے - د اوښ سورلی کوونکے - په اوښ سپور -

ـــــ **غمزه**:- (غَ+م+زَ) (ف تر - اس ، مو ، ج - زے) د اوښ په شان ناز نخرې - مجازاً بې ځايه او بې مناسبه ناز نخرې کوونه - داسې کيځ مکيځ چې کوونکي سره نۀ ښائي -

ـــــ **غمزه يا غمزے کول**:- بې ځايه نخرې کول - د داسې سړي کيځ مکيځ کول چې ورسره نۀ جوړېږي -

ـــــ **کينه**:- (کي+نَ) (ف تر ، مو ، ج - نې) د اوښ کينه يا دښمني هغه کينه بُغض يا دښمني چې په عمرونو د زړۀ نه نۀ ووځي (د اوښ دښمني يا فتنه ضرب المثل ده - چې يو ځل چاسره پيدا شي نو بيا ئې چېرې هم نۀ هېرېږي او کله چې ئې وس بر شي نو هغه سړے (أن که مالک ئې وي) بې مرګه نۀ پرېږدي) -

ـــــ **ګاو**:- (ګا+و) (ف تر - اسم) هغه غوا چې د اوښ په شان ده - مراد ترې زراف يا زرافه ده چې مشهور ځناور دے - (و--- زراف) -

ـــــ **ګربه**:- (ګُ+ر+بَ) (ف تر - صف) اوښ او پيشو - د داسې دووۀ څيزونو يو ځاے کېدل يا يو ځاے کول چې يو بل سره هېڅ مناسبت نۀ لري يا يو ډېر لوړ وي او بل ډېر ټيټ -

ـــــ **مرغ**:- (مُ+ر/ر+غ) (ف تر - اس - مذ) مشهور مارغۀ چې شکل ئې د مارغانو په شان دے خو غړانګه او پښې ئې لکه د اوښ په شان اوږدې وي - وزر ئې واړۀ وي - الوتے نۀ شي خو منډه ډېره تېزه وهي - په استريليا ، افريقه او د عربو ملک کښې موندے کېدۀ - اوس د عربو په ملک کښې ختم شوي دي -

زما زور نشته د پرو سيمرغ نه يم
شتر مرغ الوتے نه شي کوه قان ته (حافظ)

ـــــ **نال**:- (نا+ل) (ف تر - اس مذ) پخوا يو قسم وړه توپه وه چې د اس د پاسه به تړلې شوه - زنبور - زنبورک -

**شترک**:- (ش+ت+رَ+ک) (اس - مذ ، ج ونه) (۱) څړيکه - (د درد) - (۲) چپه - لهر -

**شترکه** :- (شَ+ت+ر+کَ) (اس - مو ، ج - کے) هغه چينه چې اوبۀ ترې لکه د يشبېدونکو اوبو په بوقو راوځي -

**شترلړ** :- (شُ+ت+َر+ل+ړ) (اس - مذ ، ج - ان) د أرټ د طوټکو د تړلو پړے -

**شترنګ** :- (ش+ت+رَ+ن+ګ) [اس - مذ] (و----شطرنج)

**شتری** :- (شُ+ت+ر+ی) [اس - مؤ] هغه کپړه چې د اوښانو د وړۍ نه سازه شوې وي -

**شتري** :- (شُ+ت+ري) (ف - اس - صف) (۱) هغه رنګ چې د اوښ د وړۍ په رنګ وي - سور بخن - خړ - (۲) نغاره چې اوښ په شاتړلے او وهلے شي -

**شتک دېخوا شتک اخوا** :- (شُ+ت+ک+دې+خ+وا+ش+تَ+ک+اخ+وا) (و---- شت دېخوا شت اخوا)

**شـتک شـتک** :- (ش+ت+ک+ش+ت+ک) (ق اس صوت) يو اواز دے چې د غوئي د تحريک د پاره اباسلے شي - چې په غوا وخېژي -

**شتکه** :- (ش+ت+کَ) (اس - مو ، ج - ئې) شته - د ماشومانو د لوبې وړوکے لرګے

**شتکے** :- (ش+تَ+کَے) [مذ] (و---- شت)

**شتکي** :- (ش+تَ+کَ+ئي/یٔ) (اس مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د ملک دینو ځانګه ده او ملک دینی ، منزی ، علي زئ محسود دي - (بله شجره کښې د ملک دینو په اولاد کښې د شتکي نوم شته) -

**شتل** (۱) :-(شَ+ت+ل)

**شتله** (۲) :- (ش+ت+لَ) (اس - (۱) مذ (۲) مو) لته - لغته - (چړګ وغیره)-

**شتلے** :- (شَ+تَ+لے) ---------------------------

**شتلي** :- (شَ+تَ+لي) ---------------------------

**ـــــ وهل**:- د چړګ یا د بل مارغهٔ نیول کېدو په وخت یا دحلالېدو نه وروستو ، تړتقې وهل - لتې ټکول - ټپېدل پړپېدل [پړپېدل اصل معنا: نر ځناور چې ماده سره د علت په وخت کومه مستي کوي او یا ئې د علت په وخت زغلوي] -

**شتم** :- (شَ+ت+م) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) کنځل ، ښکنځل - بدرد -

**شتمند** :- (ش+تَ+م+ن+د)

**شتمن** :- (ش+تَ+م+ن) (و---- شته مند)

**ـــــ توب**:- (تو+ب)

**شتمني** :- (ش+تَ+م+ني) (اس - مو) (و----شته منتوب)

**شتوالے** :- (ش+تَ+وا+لے) (و--- شته مندتوب)

**شتو خېل** :- (شَ+ تو+ خې+ ل) (اس مع) دا د بابازي کور ځانګه ده او بابازي ، دوني زئ مهمند دي - (دا نوم په بله شجره کښې نهٔ شته) -

**شتومے** :- (ش+تُو+م+ے) لاستے -لاسکے - د دهاتو جوړ شوو لنګرې - د دهاتو مولے یا کوتک -

**شتومے** :- (ش+تُو+مے) (اس - مذ ، ج - مي) د لنګرې مولے -

**شته** :- (ش+تَ) (فعل) موجود دے - ته‌ٔ - هست دے -

**ـــــ کړنه**:-(ک+ړ+نَ) (ق - پ تر - مو ، ج - نې) هست کوونه - ایجادول - تکوین -

**ـــــ کول**:- (۱) هست کول - موجود کول - (۲) ثابتول - ثبوت راوستل - (ما په فلاني خپلې روپۍ شته کړې) -

**ـــــ کېدل**:-(۱) موجود کېدل - هست کېدل - په وجود کښې راتلل (۲) ثابتېدل - ثبوت ته راوستل -

**ـــــ شته**:- (ش+تَ)(اس - مو) (۱) مال دولت - پیسې ټکې وغیره (۲) موجودګي - هستي

**په ـــــ کښې**:- په موجودګۍ کښې - لکه په شته دولت کښې بد حال دے -

**ـــــ من**:- (م+ن) ---------------------------

**ـــــ مند**:- (م+ن+د) (صف - مذ ، ج - ان ، مو - ه) مال دولت لرونکے - مال دارے ، دولتمند - (شته مند هم لیکلے شي) -

**ـــــ توب**:- (تو+ب) مالداري - دولتمندي - سرمایه داري - ثروت -

**ـــــ والے**:-(وا+لے) (و---- شته مند توب)

**ـــــ مني**:-(مَ+ني) (اس - مؤ) مالداري - دولتمندي -

**ـــــ والے**:- (وا+لے) مالداري - دولتمندي - ثروت - سرمایه داري -

**ـــــ**:- (ش+تَ) (اس - مو - ج - ششے) هغه وړوکے شان لرګے - چې د واړو طرفونو ته ئې څوکې جوړې کړې شوې وي او په بل لرګي (ډنډۍ) وهلے کېږي -

**ـــــ ډنډۍ**:- (ډَ+ن+ډَ+ی) (اس - مو) د یوې لوبې نوم چې پکښې دوه لرګي پکارېږي - یو وړوکے شان لرګے چې د واړو طرفونو ته ئې څوکې وي - (شته) په بل لرګي (ډنډۍ) وهلے او لرے ویښتے شي-

**ـــــ ډنډۍ**:- د شته ډنډۍ لوبه کول - او - شته - شته ډنډۍ -

**ـــــ**:- (ش+تَ) (اس صوت) یو اواز چې په کبډي کښې لوبه کوونکے - لوبغاړے متواتر د خولې نه اوباسي - (د کت کت اواز هم اوباسي) -

**ـــــ کبډي**:- (کَ+ب+َډي) (پ تر - مو) د کبډي یو قسم چې په کښې لوبه کوونکے د مخالف میدان کښې داخلېدو سره په خولهٔ "شته شته" [کت کت ] وائي - تر کومې چې ساه ئې خلاصه شوې نهٔ وي - شته شته کوي او د مخالفې ډلې غړو له لاس وروړي - په دې حالت کښې چې چا ، چاله لاس وروړي هغه "وسوځي" (یعني د لوبې نه بهر شي ) -

**ـــــ**:- (ش+تَ) (اس - مو ، ج - شیشې) د اوبوداري او ځاځکي چې زمکې یا اوبو نه راوچتې شي - چنګے -

**ـــــ**:- (ش+تَ) (اس - مو) سوره - مشهوره ګیاه ده -

**ـــــ**:- (ش+تَ) [ق اس - مو] (و---- شتے (۱)

**شتے** :- (ش+ تَ+ ی) (اس - مو) (۱) د جوارو د وړي توکه - (۲) د اوبو په سر شین ځګ شان - (چې نباتي ماده ګڼلے شي) او برَی) -

**ـــــ**:- (ش+تَ+ی) (اس - مو) (۱) غشے - ناک - (۲) د غشي په شان څيز-

**ـــــ کول**:- لکه د غشي تېزی سره ورغوځول تېزی سره ور ویشتل - (عموماً ور ، در ، سره راځي ) -

**ـــــ کېدل**:- لکه د غشي ورخلاصېدل - د غشي په شان ورتلل (ور - در سره راځي) -

**شتے** :- (ش+تے) (اس - ج) د شُته جمع ده - چنګے -

**ـــــ کول**:- چنګې غورځول - اوبهٔ زمکه باندې په زوره غورځولو سره یا کاڼے - وغیره په ډنډ کښې ویشتلو سره د اوبو دارے او ځاځکي پورته کول -

**ـــــ ویشتل (په چا)**:- په چا باندې چنګے اچول - لوندول -

**شتے خېل** :-(شَ+تے+خې+ل) (اس مع) د ولي بېګ کور ځانګه ده چې د ګنداؤ حلیم زي مهمند دي -

**شتېمې** :- (ش+تي+مَ+ی) (ق اس - مو) د کاڼي لنګرۍ -

**شټ** :- (شَ+ټ) (اس مذ) تړیکې - د حلال کړې څيز حرکات - ارغوچک -

**شټام** :- (ش+ټا+م) (رنګ - اس - مذ ، ج - ونه) د حکومت د طرفه ټاپه شوے کاغذ چې عهدنامې وغیره پرې لیکلې شي - پوخ کاغذ - اشټام -

**شټل** :- (شَ+ټَ+ل) (صف - مذ ، مو - ه) (۱) سست پست - کاهل - (۲) شټل - ګوار - ناتراشه -

**ـــــ والے**:- (وا+لے) (اس - مذ ، ج - لي) (۱) شټل توب - شټل والے - ګوار توب - (۲) سستي پستي -

**شټل کاک** :- (ش+ټ+ل+کا+ک) (رنګ تر - اس - مذ ، ج - ونه)هغه وړوکې غونډسکې شان چې وزر پکښې لګېدلي وي - چړیا د بېډ مېنټن لوبه پرې کوله شي -

**شټلکے** :- (شَ+ټَ+ل+کے) (اس - مؤ) لاس و پښې وهنه - ترپېدل - پړکېدنه -

**شټلکي** :- وهل - پړکېدل - لاس و پښې وهل شټېدل -

**شټوب** :- (ش+ټو+پ) (انګ - اس - مذ ، ج - ونه) د انګریزی د "ستپ" بدل شکل دے - هغه نغرے چې د خاورو تېل پکښې بلېږي او دغه تېل د هوا په دباؤ سره د یو نرۍ سورې ن په ډېر زور راووځي او شنه لمبه کېږي -

**شټه** :- (شَ+ټ) (ق - اس - مو ، ج - شټې)(سُټه : وزیري) د جوارو وړے چې بنې ترې لانوې جدا شوې -

**شټېدل** :- (شَ+ټې+د+ل) (مص) پرتېدل - پرقېدل - د مرغي د حلالېدو په وخت وزر وهل - لاس و پښې وهل -

**شجاع** :- (شُ/ شَ+ جا+ (ج)+ع) (ع - صف - مذ ، مو - عه) زړهٔور - بهادر - مېړنے - پهلوان -

چې په اصل کښې شجاع عالي فطرت وي
د هغهٔ په زړهٔ کښې حب پرې د ښکار (خوشحال)

**شجاعت** :- (شُ/+جا+عَ+ت) (ع - صف مو) زړهٔ ورتیا - بهادري - مړنتوب -

دلاوري -
ـــــ **من**:- (م+ن)
ـــــ **مند**:- (م+ن+د) (عف تر - مذ ، مو - ه) شجاعت واله - زړه ور - دلاور - بهادر - مېړنے
ـــــ **مندانه**:- (م+ن+ دا+نَ) (اس - صف) د زړه ورو په شان - بهادرۍ سره - شجاعت سره -
**شجاول** :- (ش+جا+ؤ+ل) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د مبارک شاهيو ځانګه ده او مبارک شاهي ، زد داوړ دي -
**شجر** :- (شَ+جَ+ر) (ع - اس - مذ) ونه - اونه - (ف:درخت) -
**شجره** :- (شَ+ج/جَ+رَ) (ع - اس - مو ، ج - رې) (۱) ونه - اونه - (۲) نسب نامه - هغه کاغذ چې په کښې د چا د مُورث اعلى نه واخلې تر دغه سرې پورې د هغهٔ د پلارونو نيکونو نومونه پخوا راسې په ليک کښې را روان وي - (۳) د طريقت د شائيخو سلسله -
ـــــ **جنګول**:- چا سره خپل شجره نسب ملاوول چا سره د خپل شجره نسب مقابله کول د نسب په لحاظ سره خپلولي لټول يا ثابتول -
ـــــ **نسب**:- (نَ+سَ+ب) (عف تر - اس مذ) نسب نامه - (و ـــــ شجره (۲)
ـــــ **کليم**:- (کَ+لي+م) (عف تر - اس - مو) د کوه طور په خوا کښې هغه ونه د کوم نه چې حضرت موسیٰ عليه السلام ته تجّلي وربښکاره شوې وه - د کوه طور ونه -
ـــــ **وهل**:- (و ـــــ شجره جنګول)
ـــــ **يادول**:- د خپل يا د بل چا د پلرونو نيکونو نومونو سلسله وريادول -

هر چې ياده شجره کاندي چشتي
هغه کس دې مولىٰ کاندي بهشتي (خ م ب)

**شجع** :- (شَ+جَ+ع)) (ع - اس - مذ) زړه ورتيا - بهادري - مړنتوب - زورقوت -
**شځړلے** :- (ش+(ت)+س+ړ+لے) (اس - مذ ، ج - لي) سولے - ځولے - شځړلے د ترکاڼانو اوزار چې سوري پرې کوي -
**شحيم** :- (شَ+ح/حُ+م) (ع - اس - مذ) (۱) وازده - (۲) غټ والے - څرب والے -
**شحنه** :- (ش+ح+نَ) (ع - اس - مذ) کوتوال - د نن وخت د پوليس افسر - تاڼېدار -
ـــــ **شب**:- (ش+ب) (عف تر - اس - مذ) (۱) د شپې کوتوال - د پوليس افسر (تاڼېدار وغېره) چې د شپې په ډيوټۍ وي - (۲) غل - (۳) عاشق -
**شحيم** :- (ش+حي+م) (ش ع - صف ، مذ ، مو - ه) وازدې واله - څورب - غټ پټ - (عموماً لحيم سره يو ځاے راځي يعني لحيم شحيم - غوښن او څورب) -
**شخ** :- (شَ+خ) (ف - اس - مذ) (۱) غر - کوه - (۲) سخت - کلک - حيز -
ـــــ **کمان**:- (صف) کلک تير انداز -

هم پــه تــوره مېړنے وۀ
تير انداز وۀ شخ کمان (خوشحال)

ـــــ **کېدل**:- کلکېدل - سختېدل - شغ کېدل -
ـــــ:- (شَ+خ) (کَن - صف - مذ ، مؤ :شخه) ښخ - دفن -
**شخاخېل** :- (شَ+خا+خېل) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د خوشاليو ځانګه ده او خوشحالي ، توري خېل ، ابراهيم خېل ، اتمان زئ ، درويش خېل وزير دي -
ـــــ:- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې اباخېلو ځانګه ده او اباخېل ،پالاخېل ، تتا بيټني دي -
**شخاريه خېل** :- (ش + خا + ري + يَ+ خېل) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د خوجل خېل ، شادي ، نصري ، کالو خېل ، احمد زئ ، درويش خېل وزير دي -
**شخالي** :- (ش+ خا+ لَ+ ی) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د مچا يو ځانګه ده او مچا ، مده خېل ، ابراهيم خېل ، اتمان زئ ،
درويش خېل وزير دي
**شخت** :- (ش+خ+ت) (اس - مذ) سخت ګزران - تريخ وخت -
**شختولے** :- (شَ+خ+تو+لےَ) (ق - اس - مذ ، ج - لي) يو قسم رېښمينه جالۍ ده چې د وادهٔ په وخت د ناوې په پېزار کښې هوار وي -
**شخدي** :- (شَ+خ+دَ+ي) (اس مع) د بېټنو د ور سپنو يوه ځانګه ده ) (د شخدي ځانګېترا کې خېل ، او درې پلارا) -
**شخړ** :- (ش+خ+ړ) (ق - اس - مذ ، ج - ونه) د مرغو ډېر لوے سېل -
**شخړه** :- (ش+خ+ړَ) (اس - مو - ج - ړې) (۱) جنجال - قضيه - لانجه - کشاله -

راغلې شا په سترګو د دنيا د حرص لړې
نــــه وينې چې دروميږ پــــه لوري شخړې (حافظ)

(۲) جماعت - ټولې - ګڼه چې د حملې او شوکې وغېره دپاره جمع شوې وي -

صاف ميدان ئې د خط ځکه ګرد پيدا که
چې لښکرې پــرې راغلې شــخړې د خط (علي خان)

(۳) جګړه - تکرار -
ـــــ **پيدا کېدل**:- جګړه پيدا کول - فساد پيدا کول - پېښېدل - جګړه پېښېدل - لانجه د وڅاربدل -
**شخشول** :- (شَ+خ+شو+ل) (اس - مذ ، ج - ونه) زولانه - بېړۍ -

هر کله د بـــل درته پـــکښې تــلے شي
چې په پښو شي ستا د غم شخشول د چا (بېدل)

**شخص** :- (شَ+خ+ص) (ع - اس - مذ) سړے - بني ادم - بشر -
**شخصاً** :- (شَ+خ+صَ+ن) (ع - تف) شخصي طور سره - په ځان - په خپل ځان په خپل سر - فلانے شخص جوابدے دے -
**شخصي** :- (شَ+خ+صي) (ع - صف) شخص سره منسوب چې تشخص سره تعلق لري - د سړي - ذاتي -
ـــــ **حکومت**:- (حُ+کُو+مَ+ت) (عف تر - مذ ، ج - ونه) د حکومت داسې قسم چې يو کس په کښې ټول واک اختيار لري - بادشاهي ، ملوکيت - ټوال واکي -
**شخصيت** :- (شَ+خ+صي+يَ+ت) (عف تر - اس - مذ ، ج - ونه) د چا شخص کېدن - د چا ذاتي خصوصيت هستي - شان -
ـــــ **پرستي**:- (پَ+رَ+س+تي) (اس - مو) د لوے يا مشهور سړي پرستش کول يعني د هغه په وينا ګانو يا د هغه د عمل مطابق عمل کول -
**شخل** :- (ش+خُ+ل [اس - مذ] شخول ، فرياد - غم - ژړا -

د چمن په انجنو شخل دے
تــور څـونکے صمد مړ دے (غاره)

**شخل خېل** :- (شَ+خَ+ل+خېل) (اس مع) د پښتنو قبيله چې د بوي يوه ځانګه ده او بوي - ممدي ، شنګي ، بهلول زئ محسود دي -
**شخلے** :- (شَ+خ+لے) (اس - مذ ، ج - لي) د وښو يو قسم دے - يو ځنګلي بوټے شلخے چې خلق ئې پخوي -
ـــــ:- (ددغه) (ق اس - مذ ، ج - لي) هغه لرګے چې په زمکه کښې اودروي او يو بل لرګے ددې د پاسه د مال بند په طور اچولے شي -
**شخلي** :- (ش+خ+لي) (ق - اس) د قندهاري انګورو يو قسم دے چې د هغې خوشه ئې ټينګه او دانې ئې يو له بله نښتې وي - ډېر خوږ وي -
**شخنتے** :- (شَ+خ+ن+تَ/تے) (اس - مذ - ج - تي) شمشتے - مشهور ابي خناور چې په وچه هم پاي - وزيري : شکر تاتي -
**شخنه** :- (ش+خ+ن+رَ) (ق اس - مو ، ج - ړې) د هډوکي غوټه يا پند -
**شخواټ** :- (شَ+خ+وا+ټ) (ق اس - مذ ج - ونه) د هلکانو د يوې لوبې نوم -
**شخور** :- (ش+خو+ر) (ق اس - مذ ، ج - ونه) هغه شګه چې لکه د کاڼي کلکه

شوې وي - کانيزه شگه -

**شخوره** :- (ش+ خو+رَ) (صف مو ، ج-رې) په نوکونو گرولے شوے - نوکارې کړې

**شخول** :- (ش+خو++ل) (اس-مذ ، ج-ونه) (۱) د مرغو مرغانو چغار - چغار -
سوز د عشق په ملاقات د حبيب زيات شي
بـورا ځـکه د بـهار پـه گـلو شـخول کا (پير محمد)
(۲) شور ، زوږ - هائے وهو - وزيري : غورېژ

ــــ:- (شَ+خو+ل) (اس-مذ ، ج-ونه) غم - خواشيني - خفگان -
چې په پټو سترگو ناست د يار ليدل کړم
خـلق ځـۀ خـبر لـه هـسې رنـگې شخوله (خوشحال)

ــــ:- (شَ+خَ+وَ+ل) [مص مت] (و ــــ ښخول)

**شخوله** :- (ش+ خو+ لَ) (اس-مو-ج-لې) (۱) د غشـو د کښېښـودلو تيلـۍ يـا گوډے (۲) د سفر د سامان گوډے -
د مقصد ټکۍ ويشتے په تدبير نشي
بـېهوده پـرې تـشوم د عقل شخوله (حسين)

**شخولۍ** :- (ش+خو+لَ+ی) (اس-مو) وروکے شـخولے - جـولۍ - بـوڅخکۍ - د غټې کلکې کپړې نه جوړه شوې هغه جولۍ يا تيلۍ چې عموماً ئې ښکاريان اوږے ته زوړنده کړي - توشه دان - د سفر خوراک بوڅخکۍ يا لوښے -

**شـخولے** :- (ش+خ+ؤ+لے) (اس-مـذ ، ج-لـي) (۱) تيـردان - تـرکش - د غشـيو د کښېښودو کڅوړه يا گوډے - (۲) د مسافرانو يا د ښکاريانو تېله چې د اوږے نه ځوړوندوله شي - (۳) د جوارو د بوټي ډانډے -

ــــ:- (ش+خو+لے) (اس-مذ ، ج-لي) د سفرگوډے -
هر څـوک دا کلام بولي
غلطــي دے وسکولي
غلطــي دے کـا پــټه
د خپل رحم پــه شخولي
دغه ميم د گنج پرغولي
د احمد د احد شخولي (ارزاني)

**شخوند**:- (ش+خ+وَ+ن+د) (اس-مذ ، ج-ونه) د خوراک په څۀ څيـزو خولـۀ وهـل - (اردو: جگالي - فارسي: نشخوار)

ــــ **کول**:- د خوراک څۀ څيز په خولـۀ کښې د اچولـو نـه پس پـه غاښـونو مېـده کول (اردو: جگالي کرنا)
قتلمې مې ورتــه سـازې کړې د قندو
د اور بشو په ډوډيو چې چا شخوند کړ (خوشحال)

ــــ **وهل**:- (و ــــ شخوند کول)
چـې له تـاراتــه د صبر گفتگوئي کا
ناصحان وهي بې ځايه دا شخوندونه (حميد)

ــــ **وهل په دواړو جامو**:- (خوراک عمومـاً پـه يـوه جامـه / ځامـه مېـده - کولے شي، ځکه) ډېرحرص څرگندول په حرص خوراک کول -
حـلال حـلال وې له حرامونه پرهېز کړه مدام
لـکه د اوښ په دواړو جامو شخوند وڼۀ کړي (حافظ)
دهر طرف نه وهنه کول - ډېر حرص يا خود غرضي کول -

ــــ **وهل په زړۀ**:- (پَ+زَ+ړۀ) (۱) ځينې ځاروي لکه د اوښ خوراک زر زر وخوري او پـه گېـډه کښـې پـه يـوه خاص کڅوړه کښې جمع کـړي - بيـا بـل وخت دغلته نه لږلږ را باسي او شخوند پرې وهي - (۲) کنايتـهً: پـه زړو خبرو ځان مشغولول زړې خبرې رايادول او له سره کول -

ستا په تېر وصال اکبر تر اوسه پائي
لکه اوښ وهي مــدام پــه زړو شخوند (اکبر)

**شخونگ** :- (شَ+خَ+ؤ+ن+گ) [ق-حمص] (و ــــ ښخونک)

**شخونه** :- (شَ+خَ+ؤ+نَ) [حمص] (و ــــ ښخونه)

**شخوونکے** :- (شَ+خَ+وُ+ن+کے) [فا ع-مذ] (و ــــ ښخوونکے)

**شخي يا شېخۍ** :- (ش/شې+خي/خَ+ی) (اس مع) د پښـتنو د يـوې قبيلـې نـوم دے چې د ويسپن قبيلې سره تعلق لري او بيټني دي - (بيا د شخسـي د قبيلـې ځـانگې دا دي تـوراکي خېـل ، برسـت خېـل، درې پـلاري او مازمايه)-

**شخېدل** :- (شَ+خې+د+ل) [مص لا] (و ــــ ښخېدل)

**شخېدنگ** :- (ش+خې+د+ن+گ) [ق-حمص] (و ــــ ښخېدنگ)

**شخېدنه** :- (ش+خې+د+نَ) [حمص] (و ــــ ښخېدنه)

**شخېدونکے** :- (شَ+خې+دُ+ن+کے) [مف-مذ] (و ــــ ښخېدونکے)

**شّد** :- (شَ+د) (ع-اس-مذ) (۱) کلکونه - مضبوطونه - (۲) تشـديد - پـه يـو لفظ کښې چې يو لفظ دوه ځله راشي نو دواړه په يو کښې مدغم کول - (۳) د تشديد علامت يعني (ّ) -

ــــ **او مّد**:- (اَ+و+مَ+د) (ع-تف) (۱) پوره زور او قوت سره - سختي او تندۍ سره - (۲) شان و شوکت - عزت او ابرو -

ــــ:- (ش+د) (ف-فعل) (د شدن نه د ماضي فعـل دے) وشـه - اوشـه - (شـوے دے - تېر شه)-

**شدّاد** :- (شَ+د+دا+د) (اس مع) د يو پخواني قام "عـاد" د يو زورور بادشاه نوم - دۀ د "باغ ارم" (دام جنت) په نوم يو عظيم الشان بـاغ جـوړ کـړے وۀ خـو پـه دې باغ کې ئې دخلېدل نصيب نۀ شول - وائي چې د خدايۍ دعوىٰ ئې کړے وه
ده مکاره پـت ئې نشته لـه هېڅ يـاره
پهياري ئې پښېماني دعاد شداد وشي (حافظ)

**شدائد** :- (شَ+دا+ئي+د) (ع-اس ج) د "شديد" جمع ده - سختۍ او تکليفونه -

**شـد بـد** :- (شُ+د+بُ+د) (ف-اس مـذ) ("بـد" د "بـود" مخفف دے چې د بـودن مصدر نه د ماضي فعل دے) مجازاً لږ لوست معمولي پوهه -

**پـه ــــ پوهېدل**:- په لږ لوست کښې معمولي پوهه لرل - ايله ايله د لوستلو يا دليکلو قابليت لري عموماً په نفي کښې استعمالېږي - لکه فلانے په شد بد نۀ پوهېږي يعني هېڅ نۀ پوهېږي -

**شدّت** :- (ش+د+دَ+ت) (ع-اس-مـذ ، ج-ونـه) (۱) سـختي - تکليـف (۲) زيـاتے - زور ظالم - (۳) سخت سلوک - جگړه - (۴) کثرت -
د مجاز له ياره طمع د خبر مه کړه
تـمامي شـر وشـدت دا اور بـوس (رحمان بابا)

ــــ **کول**:- سختي کول - سخت سلوک کول - جگړه کول -
هر بيمار چې د طبيب سره شدت کا
که ئې وگورې خپل ځان وته افت کا (خوشحال)

**په ــــ سره** :- (سَ+رَ) په سختۍ سره - په پوره قوت سره - لکه: جنگ پـوره قـوت سره جاري وۀ -
چې د شنام ئې دي عادت دښمن د خـدا ے دے
ځـنکدن بـــه ئې پـه شـدت پـه دشـوارۍ وي (حافظ)

**شدرو** :- (شَ+دَ+رَو) (ق-اس-مذ) د ښځو قال مقال - د ښځو مباحثه -

**شـدک کـور** :- (شَ+دَ+ک+کو+ر) (اس مع) د "حيـاتي کـور" ځانگـه ده چې شـاه منصور خېل دي ، دادو خېل ، ترک زئ مهمند دي-

**شدکه** :- (شَ+د+ک+کَ) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د گيتـا

خېلو څانګه ده او ګيتاخېل ، محمد خېل ،ملخ ، ملي زاد دوړ دي -

**شدني** :- (شَ+دَ+ني) (ف-صف) کېدونکې - کوم کار کېدونکې يا د کېدلو وي - ممکن شلونې -

**ـــ کار**:- کېدونکې کار - شونې کار -

محبت شدني کار په ماوشه
نور دې نۀ شي په هېڅ دا شدني (حميد)

**ـــ کېدل (په چا)** :- کېدونکې کار پېښېدل - شونې کار دوڅاريدل -

شدني درباندې وشوه
که کک وه که د لک (حميد)

**شدوزی**:- (شَ+د+دو+زَ+ی) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم چې د علي زيو څانګه ده او علي زئ ، سنځر خېل کاکړ دي -

ـــ:- (ددغه) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د بلوزيو وړه څانګه ده او بلوزئ ، پانيزي ، هارون خېل ، سناتيه ، کاکړ دي - (بله شجره کښې دا نوم شادوزئ ليکلے دي)-

ـــ:- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله چې حسن زيو همسايه دي - (بله شجره کښې دا نوم شادو زي ليکلے دے) -

ـــ:- (ددغه) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د غلځيو څانګه ده او علي زئ، سنځرخېل کاکړ دي -

ـــ:- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د کبزئ څانګه ده - سنځرخېل کاکړ دي - (بله شجره کښې دا نوم شادو زئ ليکلے دے) -

**شدياره** :- (شُ+د+يا+رَ) (اس - مو ، ج - رې) هغه زمکه يا پټے چې د کرکوندې د پاره اړولے شوې وي - هغه پټے چې يوې په کښې شوې وي - شو د ياره ، سادين -

**ـــ کول**:- په پټي کښې يوې کول - د کرد پاره تيارؤل -

**شديد** :- (شَ+دي+د) (ع-صف مذ ، مو - ه) سخت - تېز - زور دار - محکم - ډېر - زيات

**ـــ العمل**:- (د+ل) عَ+مَ+ل) (ع تر - صف) په عمل کښې سختي کوونکے - ډېر سخت عمل کوونکے -

**شډل** :- (شَ+ډَ+ل) (صف - مذ ، مو - ه) (اس - مذ ، ج ان) (۱) سست - کاهل سړے (۲) جاهل - جټ - ګوار - (۳) چې صفا او مهين نۀ وي - ستغ لکه: شډله ګيره - (۴) ناهموار - کندرې - کوندرې - (۵) د جوارو هغه وړے - چې پوره دانې پرې نه وي - ګنجې توکه وي -

په هجران کښې زۀ بې برګ ونوا ښه يم
لکه کښت چې اوبـۀ نۀ مومي شډل شي! (رحمان بابا)

**ـــ توب**:- (تو+ب) (۱) شډل والے - چې صفاي او هواري په کښې نۀ وي - ناهمواره او ستغ - (۲) جټ توب - ګوار توب - ناشائستګي - بې تهذيبي -

**ـــ کېدل**:- (۱) صفاي او هواري نۀ پاتې کېدل - (۲) ناشائسته کېدل - ګواربدل - ګوار جوړېدل - بې تهذيبه کېدل -

**ـــ شاړ**:- (شا+ړ) (صف ، مذ ، مو شاړه شډله) (۱) ببخي ګوار - جټ - بې تهذيبه - ناشائسته (۲) چې مهين او هوار نه وي - ستغ او ناهموار -

ـــ:- (شَ+ډ+ل) (رنګ - اس - مذ ، ج - ونه) د ګنډلو د مشين يوه پُرزه چې د تار لاندېني ګوتته په کښې کښېښودے شي -

**شډله** :- (شَ+ډَ+لَ) (صف - مو - ج - شډلې) (۱) چې مهينه او هواره نۀ وي - ناهمواره ستغه - که شډله کپړه چې صفا او هواره نۀ وي اُودلے شوے (۲) جټه - ناشائسته بې تهذيبه -

**ـــ خامتا**:- (خا+م+تا) هغه خامتا چې صفا ، مهينه او هواره نۀ وي اُودلې شوې - ستغه خامتا چې د کورونو سپښسونه په ګدۍ اودلې شوې وي -

**شډېدل** :- (شَ+ډَ+لې+دَ+ل) (و---- شډل کېدل)

**شـر** :- (شَ+ر) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) شرارت - وانې ، فساد - خرابے (۲) جنګ - جګړه (۳) بد - بدي -

**ـــ الناس**:- (شَ+ر+رُ+ن+نا+س) (اس - مذ) په خلقو کښې لوے فسادي - شر پېدا کوونکے - لوے مفسد ، وران کارے ، ورانے اچوونکے لوے فسادي -

تبّرا تـرې فرښتې شي پـاک سر شته
شرّالناس دے له خناسه ئې ياري وي (حافظ)

**ـــ انداز**:- (اَ+ن+دا+ز) (ف تر - صف - مو - ه) شر اچوونکے - شر پېدا کوونکے - مفسد - فسادي-

**ـــ او شدت**:- (اَ+و+شِ+د+دَ+ت) (پ تر - اس مذ ج - ونه) فساد اس سختي-

د مجاز له ياره طمع د خېر مه کړه
تمامي شر و شدت دے د اولس (رحمان بابا)

**ـــ او شور**:- (اَ+و+شو+ر) (فپ تر - اس - مذ ج - ونه) فساد او شور شغرب -

درندانو د مجلس په شروشور کښې
اروېـدۀ شي کـله کـله غـلے وعظ (حميد)

**ـــ پاڅول**:- شر پېدا کول - فساد جوړول -

**ـــ پسند**:- (پَ+سَ+ن+د) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) شر خوښوونکے - فساد يا جګړه جنګ خوښوونکے - (د صلح پسند ضد)

**ـــ پسند عنصر**:- (عَ+ن+ص+ر) (عف تر - اس - مذ ، ج - ونه) شر پسند ډله په يو معاشره ښاريه يا اولس کښې هغه خلق چې شر او فساد خوښوي -

**ـــ پورته کول**:- فساد پېدا کول - ورانے جوړېدل - جنګ جګړه جوړېدل -

**ـــ په بيه (ببعه) اخيستل**:- په نۀ څۀ خبره جنګ ته تيارېدل - جنګ او شر فساد خوښول-

**ـــ پېدا کول**:- ورانے پېدا کول - فساد جوړول - د جنګ جګړې اسباب پېدا کول -

**ـــ ته غېل**:- هر وخت جنګ جګړې ته تيارېدل - جنګ په بيعه اخيستل-

**ـــ جوړول**:- (و---- شر پېدا کول)

**ـــ جوړېدل**:- فساد جوړېدل - جنګ جګړه جوړېدل-

**ـــ خوښول**:- جنګ جګړه خوښول - خبره شر او فساد ته اړول - لکه شرمه خوښه وه ، ګني ډېر بد به درله بد شي-

**ـــ شنګايه**:- (شَ+ن+ګا+يَ) [اس صف - مؤ] جنګيالۍ - شريره ښځه -

**ـــ کول**:- جنګ جګړه کول - شور کول -

**د ـــ کونه**:- (کُ+نَ) (۱) ډېر زيات شرارتي - شر پېدا کوونکے (۲) جنګ جګړې ته تيار -

ـــ:- (شَ/شَ/شُ+ر) (اس - صوت) (۱) د هوا وغېره په تېزۍ سره د تېرېدلو اواز - (۲) په هوا کښې د غشي تللو اواز -

**ـــ شُر**:- (شُ+ر) (اس صوت) د باد د الوتو اواز - شُر شُر باد الوځي -

ـــ:- (شُ+ر) (اس صوت) د اوبو د داري په زور سره د بهېدلو اواز - شرِ شرِ - لکه: شُر شُر متيازې ئې وکړې -

**شرا** :- (ش+را) (ع - اس - مو) (۱) په بيعه اخيستل - خريد کول - (۲) خرڅول - (دا لفظ لغت اضداد دے - دوه مخالفې معنې ورکوي) -

**شـراب** :- (شَ+را+ب) (ع - اس جم) (۱) هر هغه څيز چې د څښکلو وي - د څښکلو څيز-

تـير زقـوم بـه ئي طعـام ، حـميم شراب وي
په شوملو ئې خولې ورتې ، سوخته کباد شي (حافظ)

(۲) اصطلاحاً - د ميوو اوربشو وغېره نه جوړ شوې هغه مائع څيز چې په

څښکلو ئې بني ادم نشه کېږي - بډال بوزه وغېره -

ـــــ **ارغواني**:- (اَ+ر+غ+وا+ني) د سور رنګ شراب -

ـــــ **پرتګالي**:- (پ+ر+تَ+ګا+لي) هغه شراب چې د يورپ يو ملک پرتګال نه به راتلل (ددې ملک ته اول اول د پرتګال خلق راغلي وۀ - هغوي به دخپل ملک جوړ شوي شراب راوړل او په دې ملک کښې به ئې خرڅول - ځکه ددې وخت په شعرونو کښې د پرتګال شرابو ذکر شوے دے بيا وروستو چې پېرنګيان راغلل نو دوي د خپل ملک نه قسم قسم شرابونه راوړل چې مختلف نومونه ئې لرل) -

ـــــ **خانه**:-(خا+نَ) (اس - مو ، ج - نې) (۱) هغه ځاے چېرته چې شراب څښکلے شي د شرابو د څښکلو ځاے - بډال ځاے - (۲) هغه ځاے چېرته چې شراب جوړولے يا خرڅولے شي -

ـــــ **خوار**:- (خ+وا+ر) يا (خا+ر) (و ـــــ شراب خور)

ـــــ **خور**:- (خو+ر) (ف تر - اس - ج - خوارۀ) شراب څښونکے - شرابي - شراب نوش مے نوش - مېخور -

ـــــ **خوره**:- (خ+وَ+رَ) (فپ تر - اس - مو ، ج رې) شراب څښونکې ښځه - د شرابو نشه کوونکې ښځه - شرابڼه - مے خوره ، مے نوشه - شراب نوشه -

ـــــ **خوري**:- (خو+ري) (ف - اس - مو) د شرابو څښکل - د شرابو د څښکلو عادت - مے خوري -

ـــــ **دواتشه**:- (دو+آ+ت/ت+شَ) (ف اس +جم) هغه شراب چې دوه ځله په اور کشيد شوي وي - (داسې شراب په اثر کښې زيات تېز وي) -

ـــــ **طهور**:- (طَ+هُو+ر) (اس - جم) پاک شراب - هغه شراب چې په جنت کښې به جنتيانو له ورکولے شي -

که ئې حور ، شراب طهور يا دېرې
دغه واړه به حاصل د رب په داد شي (حافظ)

**شراباً طهورا** :- (شَ+را+بَ+ن+طَ+هو+را) (اس - مذ) (۱) پاک شراب - (په قران شريف کښې د جنت د شرابو ذکر د "شرابو طهورا" په نوم راغلے دے) د جنت پاک شراب - (۲) مجازاً - شومبلو - (شوبنو) ته هم وائي -

ـــــ **کشيد کول**:- د ميو دانو يا د اوربشو وغېره چې په اوبو کښې ګډ کړې وي - په اور کښېښودل او د يوې خاص الې په ذريعه درې عرق -

ـــــ **ايستل**:- باب:- (نا+ب) (ف اس جم) خالص شراب - سوچه شراب -

ـــــ **وهل**:- ډېر شراب څښل -

**شرابڼه**:- (شَ+را+ب+ن+ڼَ) (فپ تر - اس - مو ، ج - ړې) شراب څښونکې ښځه - د شرابو نشه کوونکې ښځه - شراب خوره -

**شرابو**:- (شَ+را+بو) د "شراب" اضافي يا مجروري شکل -

د ـــــ **دور چلېدل**:- په مجلس کښې د ساقي ، شرابو په شرابيانو باندې وار په وار څښکول -

**شرابي**:- (ش+را+بي) (ف - اس - ج - ان) شراب څښونکے - د شرابو نشه کوونکے - شراب خور - مېخور -

ـــــ **کبابي**:- (کَ+با+بي) (فپ تر - اس مذ ، ج شرابيان کبابيان) شراب څښونکے او ورسره کباب خوړونکے د شرابو نشه کوونکے - د شرابو نشئي مجازاً بدعمله سړے بد اخلاقه سړے (د شرابو سره چې تراخۀ وي د خولې د خوند د ښۀ کولو د پاره ورسره ، سره کړې غوښه يا کباب وغېره خوړل شي) -

**شرارت**:- (شَ+را+رَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) د شر عمل - شر او فساد پېدا کوونه - وراني -

ـــــ **کول**:- شر او فساد پېدا کول - وراني کول -

**شرارتاً**:- (شَ+ر+رَ+تَ+ن) (ع - تف) د شرارت په طريقه - د شوخئ په طريقه -

**شرارتي**:- (شَ+را+رَ+تي) (فپ تر - صف) شرارت کوونکے - شرّي - فساد پېدا کوونکے - ورانے کوونکے - يا ورانے پېدا کوونکے - مفسد -

**شراره**:- (ش+را+رَ) (ف - مو ، ج - رې) د اور بڅرے - وزيرې : سپېکے ، بڅرکے -

**شرافت**:- (شَ+را+فَ+ت) (ع - مذ ، ج - ونه) (۱) لوئي - لوړ والے - (۲) ښۀ سړيتوب - ښۀ والے - (۳) اصيلتوب - ښۀ خاندان والے - نجابت (۴) د مسلمانانو د نارينه ؤ او زنانه ؤ د نوم برخه -

ـــــ **ماب**:- (مَ+ا+ب) (ع تر - اس - مذ) د عزت يو لقب دے چې د کوم عزت مند او شريف مشر د پاره استعمالېږي -

**شراک**:- (شِ+را+ک) (اس - مذ ، ج - ونه) تسمه - د څۀ څيز د تړلو تسمه -

نازولي خوبان شاه له رشن لاړه
مونږ ئې نۀ رسو د نعلو د شراک ته (حافظ)

**شراکت**:- (شَ/شِ+را+کَ+ت) (ع - اس مذ ، ج - ونه) شريکوالے - شريکي - برخه داري - ملګرتيا - حصه داري -

ـــــ **کول**: په څۀ کار کښې شريکېدل - په څۀ معامله کښې برخه اخيستل - يا برخه لرل

**شراکتي**:- (شَ+را+کَ+تي) (عپ تر - اس - مذ ، ج - ان) شريکوال - هغه سړے چې په کار يا معامله کښې حصه لري - ملګرتيا -

**شرائط**:- (ش+را+ئې+ط) (ع - ج) د "شرط" جمع ده - (و ـــــ شرط) -

ـــــ **تسليمول**:- شرطونۀ منل - د بل فريق د طرفه ايښودي شوي شرطونه منل -

ـــــ **کښېښودل**:- د کومې معاملې (صلحې وغېره) د پاره شرطونه وړاندې کول

ـــــ **نامه**:- (نا+مَ) (عف تر - اس - مو ، ج - مې) هغه کاغذ چې په کښې د څۀ کاروبار يا معاملې وغېره په حقله شرطونه ليکل شوي وي -

**شرائع**:- (شَ+را+ئې+ع) (ع - ج) د "شريعت" جمع ده - (و ـــــ شريعت)

**شرايين**:- (شَ+را+يي+ن) (ع - اس - ج) د شريان جمع ده - د بني ادم د وجود هغه رګونه چې صفا وينه ترې د زړۀ نه د بدن مختلفو برخو ته رسي -

**شربت**:- (شَ+ر+بَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) د څښکلو خوږ څيز چې په شهدو شکرو ګوړه وغېره خوږ شوے وي - (او په کښې د خوند د پاره نيمبو يا د مېوو رس اچول شوے وي) - (۲) رشوت -

ـــــ:- (شَ+ر+بَ+ت) [اس - مذ ، ج - ونه] هغه اوبه چې په کښې خواږۀ ګډ وي - د څښکلو خوږ مائع مجازاً بډې رشوت -

ـــــ **جوړول**:- په خاص طريقې سره د اوبو او چينو نه خوږ سيال جوړول او پکښې د مختلفو څيزونو ګډون کول - لکه شربت انار شربت صندل وغېره -

ـــــ **غوښتل**:- (اص) بډې رشوت غوښتل -

ـــــ **ورکول**:- اص بډې رشوت ورکول -

**شربت خېل**:- (شَ+ر+بَ+ت+خېل) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د پائپالي ښاخګه ده او پائپالو ، کابل خېل ، ولي خېل ، اتمان زئ ، درويش خېل وزير دي - (په بله شجره کښې د پائپالي په ځاے بائپاپي ليکلي دي) -

**شربتي**:- (شَ+ر+بَ+تي) (اس - مو) (۱) د شربت د رنګ - د شربت په شان رنګ لرونکے - سور بخن ، زېړ بخن او سور رنګ - (عموماً د ښکلو سترګو د تشبيه په طور استعمالېږي) - (۲) شربت خرڅوونکے -

**شربل**:- (شَ+ر+ب+ل) (مص) (۱) ماستۀ شاربل د منداڼو په ذريعه خوځول راخوځول چې کُوچ ترې وباسلے شي - (۲) خبره اوږده - عبث بحث کول -

ـــــ **اوبۀ**:- (و ـــــ اوبۀ شاربل)

ـــــ **تشې شوملې**:- (و ـــــ تشې شوملې شاربل)

**شرپ**:- (شَ+رَ+پ) [شراپ] (ق ، اس ، مذ) د سروې په شان يوه ونه ده چې

پاڼې ئې د لمنځې د ونې په شان وي -
ــــ :- (ش+رَ+پ) [اس صوت] شرپ - د اوبو تویولو اواز -
ــــ **وهل، دباران**:- د باران ګڼه شیبه کېدل -
**شرپا** :- (ش+رَ+پا) [اس صوت] (وــــ شرپهار)
**شرپهار** :- (ش+رَ+پَ+ها+ر) (اس صوت) د شرپ شرپ یا د شرپ شرپ اواز چې پرله پسې راځي - شرپا - شرپې -
**شرپې** :- (ش+رَ+پ+پې) (اس صوت) (وــــ شر پهار)
**شرت** :- (شَ+ر+ت) [اس - مذ ، ج: تونه] شرط -
**شرت شپاړس** :- (شَ+ر+تَ+ش+پا+ړَ+س) (ق - صف) خواره واره - تبت و پرک - درهم برهم -
ــــ **کول**:- د یو بل نه جدا کول او دېخوا اخوا - غورځول - دېخوا اخوا نوستل - تس نس کول - له فلاني زما کاغذونه شرت و شپاړس کړل -
ــــ **کېدل**:- تس نس کېدل - تیت و پرک کېدل - درهم برهم کېدل -
**شرح** :- (ش+رَ+ح) (ع - اس ، ج - حې) (۱) بیان ، وضاحت - تفسیر تفصیل -

تۀ چې حال د خپل عاشق غواړې په شرحه
بـویـه دا چې خوشحال وکښي کـتابونه

(۲) نرخ - قیمت -
ــــ **سود**:- (سُ+د) (عف تر - مو) د سود نرخ - لکه سلور روپو پسې به څومره سود ورکولې یا اخستې کېږي -
ــــ **حال**:- (حا+ل) (ع ف تر - اس - مو) د حال پوره تفصیل - پوره پوره حال -
ــــ **کول**:- تشریح کول - وضاحت کول - تفسیر کول - تفصیل بیانول -
ــــ **وبست**:- (حو+ب+َس+ت) (عف تر - تف) پوره وضاحت سره - بنۀ پرانستې او واضحه (بیان وغېره) -
**شرر** :- (شَ+رَ+ر) (ف - اس - مذ) بخرې (دَ اور) سپنکې -
ــــ **بار**:- (بـا+ر) (ف تـر - صـف ، مـذ - مـو - ه) بخـري وَروونکې - سـپنکي غورځونکې -
ــــ **باري**:- (با+ري) (ف تر - اس - مو) بخري وراونه - سپنکي غورځونه
ــــ **رېز**:- (رې+ز) (وــــ شرربار)
ــــ **رېزي**:- (رې+زي) (وــــ شررباري)
ــــ **فشان**:- (ف+شا+ن) (ف تـر - صـف مـذ ، مـو - ه) د اور بخـري نوسـتونکې سپنکي غورځونکې -
ــــ **فشاني**:- (ف+سا+ني) (ف تر - اس - مو) بخري غورځونه ، سپنکي نوستنه -
**شرزه** :- (شَ+ر+زَ) (ف - صف) هېبت ناک - وېروونکې - (دا لفظ عموماً د زمري یا د پړانګ وغېره نه په هېبت کښې راځي) -

چې وړ به ئې له ور ویزو
نـۀ وۀ کار د شـرزه شېر (خوشحال)

**شرشاهي** :- (ش+ر+شا+هي)
**شر شاي** :- (شَ+ر+شا+ی) (اس - مو - ج - هۍ/يَې) (۱) یوه پخوانۍ سکه - (چې شېر شاه سوري باچا په نوم نومړلې شوې وه) - (۲) یو پخوانۍ وزن -
**شر شره** :- (شَ+ر+ش+رَ) (رق ، اس - مو ، ج - رې) فیته - هغه فیته چې په جامو لګولې شي - ګنګوره - کنګرو -
**شرشری** :- (شُ+ر+شُ+رُ+ی) (اس - مو) ڇرڇرې - ټوټکه - د اتشبازۍ یو څیز چې بـل شـي نو د شُر شُر یا د ڇُر ڇُر غـوندې اواز هم وکي) ڇمڇورۍ (ګن) -
**شر شوبنده** :- (شَ+ر+شو+ب+ن+دَ) (ق - اس - مو - ج - دې) زنځه - زنزه - هزر پایه (مشهوره حشره چې ډېرې پښې لري) - سرسوبله (ګن) شوبله -
**شرط** :- (شَ+ر/ړ+ط) (ع - اس - مـذ ، ج - ونـه) (۱) تـړون - پابنـدي - اقـرار - قـول - قرار - عهد (۲) هغه رقم یا تاوان وغېره چې د څۀ کار ، شرط تړونکي خلاف واقع شي نو هغه بل فریق له ورکوي - (۳) جواري -
ــــ **ادا کول**:- شرط پوره کول -
ــــ **ادا کېدل**:- شرط پوره کېدل - د څۀ معاملې په حقله ضروري او لازمي کار تر سره کېدل -
ــــ **بیلل**:- یو کار د شرط تړونکي د وېنا خلاف کېدل (په دې صورت کښې، کوم تاوان جُرمانه وغېره چې هغې منلې وي - هغه بل فریق له ورکړي) -
ــــ **پوره کول**:- (۱) قول اقرار پوره کو - د شرط تړلو په وخت چې څۀ تاوان ، جُرمانه وغېره منلې وي - هغـه ورکـول - (۲) د کـومې معـاملې پـه حقلـه ضروري او اهم کار تر سره کول -
ــــ **پوره کېدل**:- (۱) قول اقرار سرته رسېدل - د شرط د تړلو په وخت چې څۀ تاوان یا جرمانه وغېره منلې شوې وي - هغه ورکړې کېدل - (۲) د کومې په حقله ضروري او اهم کار سر ته رسېدل
ــــ **تړل**:- د څۀ کار یا معاملې د کېدلو ، یا د نۀ کېدلو په حقله دا قول اقرار کول - چې که وشي نو یو کس به وګټي او که او نۀ شي نو بـل کس بـه وګټي یا دا چې د یو کس د وېنا خلاف وشي نو هغـه بـه څۀ تاوان یا جُرمانه وغېره بل فریق له ورکوي -
ــــ **کول**:- (۱) (وــــ شرط تړل) (۲) جواري کول -
ــــ **کېدل**:- (۱) شرط تړلې کېدل - شرط مقرر کېدل - (۲) جواري کېدل -
ــــ **کښېښبودل** :- (وــــ شرط کښېښبودل)
ــــ **نامه**:- (نا+مَ) (عف تر - اس - مو - ج - مې) هغه کاغذ پـه کوم چې دڅۀ معـاملې په حقله څۀ شرط لیکلې شوې وي او دواړو غـاړو پـرې دسـتخطونه کـړې وي - (عموماً شرائط نامه استعمالېږي) -
ــــ **ګټل**:- یو کـار د شرط تړونکي د وېنا مطابق - واقع کېدل (او کوم رقم وغېره چې د شرط په وخت منلې شوې وي هغه د بل فریق نه واخلي) -
ــــ **واله**:- (وا+له) (پ تر اس - مذ) شرط لګونکې - شرط مقررونکې -
**شرطه** :- (شَ+ر/ړ+طَ) د شرط مجروري شکل دے - بې لـه کوم څۀ بغېر د څۀ شرط لګولو نه غېر مشروط -
**شرطي** :- (شَ+ز/ړ+تي) (فپ تر - اس - مو) (۱) شرط واله - مشروط -
(۲) فاحشه - ډمه - (۳) جوارګر سړے -
**شرطیه** :- (شَ+ر+تي+يَ) (ع - تف) په شرط سره - یعني دا کار وغېره بـه ضرور د ویونکي د وېنا - مطابق کېږي -
**شـرع** :- (ش+رَ+ع) (ع - اس - مـو ، ج - عـې) قـانون - قاعـده - لاز اصـطلاحاً هغـه قانون او لار چې د مذهب له رویه نافذ شوې وي - د قران او سنت پـه رڼا کښې جوړ شوي قوانین -
ــــ **محمدي ص**:- (مُ+حَ+م+مَ+دي) هغه قانون یا دستور کوم چې حضرت محمد مصطفٰي ص نافذ کړے دے ، اسلامي قانون -
ــــ **په** :- د شریعت د حکم مطابق -

قاتل په شرع خلاص دے
لــه دیـتـه لــه قـصـاصـه (خوشحال)
چې پـه شرع نـاروا په رسم عېب دي
هغه چـارې په دا وخت عاقلا نه شوې (سعید)

**پـه ــــ تلل**:- د شرعې د قوانینو او حکمونو پابنـدي کـول - د شـرعې د حکـم مطابق عمل کول -

شقي سعید دواړه پېدا کړي د مادر په شکم
په شرعه درومه دا قدرت د رب تعالٰی وګڼه (حافظ)

**په شرع ــــ کښې شرم نشته**:-

**په شرع ـــ شرم دَخَهٔ**:- د شرعي حکم معلومولو کښې هيڅ قسم شرم يا تردد نهٔ دے پکار - ان که هغه خبره يا مسئله داسې وي چې ويونکے ئې په تپوس يا وينا کښې شرمېږي - د پردې دخبرو په حقله هم د شرعي حکم معلومولو او بيا پرې عمل کولو کښې شرم نهٔ دے پکار-

**په ـــ ناروا**:- د شريعت له رويه ناجائز - ناروا کار ناجائز کار -

چيلم په شرع ناروا دے-

په ما روا دے د يار غم غلطوينه (ټپه)

**شرعاً** :- (شَ+ر+عَ+ن) (ع - تف) د شرعي د حکم مطابق -

**ـــ وعرفاً**:- (ع+ر+فَ+ن) (عف تر - تف) هم د شرعي مطابق او هم د عام رواج مطابق ، د شرعي او د رواج دواړو سره سم -

**شرعه** :- (شَ+ر+عَ) [اس - مؤ] (و ـــ شرع)

**شرعي** :- (شَ+ر+عي) (عف تر - صف) (۱) هغه خبره يا معامله چې شرعي سره تعلق لري - (۲) قانون -

**ـــ حکم**:- (ح+ک+م) (اس مذ ، ج - ونه) هغه حکم يا فېصله چې د شريعت مطابق ورکړے شوې وي - يا هغه حکم يا فېصله کومه چې د شريعت مطابق وي -

**ـــ دعوٰي** :- (دَ+ع+وا) (ف تر - اس - مو ، ج - وې) هغه دعوىٰ (عدالتي شکايت) کوم چې د شرعي مطابق وي يا د شرعي مطابق فېصله کول غواړي-

**ـــ محکمه**:- (مَ+ح+کَ+مَ) (عف تر - اس - مو - ج - مې) (۱) هغه محکمه يا د حکومت شعبه (څانګه) کوم چې د شريعت مطابق مقدمې فېصله کوي - (۲) د شريعت مطابق فېصله -

**ـــ وادهٔ**:- (وا+د) (فپ تر - اس - مذ ، ج - ونه) هغه وادهٔ چې د شرعي د احکامو مطابق وي (عموماً) داسې وادهٔ ته وئيلے شي چې پکښې ډنګ ډونګ او د شرعي خلاف رسمونه نهٔ وي -

**شرعې** :- (شَ+ر+ع+ې) د "شرعي" اضافي يا مجروري وغېره شکل دے -

**ـــ ته برابرول**:- (و ـــ شرعي ته سمول)

**ـــ ته سمول**:- څهٔ ناجائز کار په داسې طريقه يا حيله کول چې د شرعي له رويه پرې څهٔ اعتراض نهٔ شي کېدے-

**شرغشے** :- (ش+ر+غ+شَے) (اس - مذ ، ج - ي) د نل يو قسم چې بند بند وي - خو په مېنځ کښې ډک وي - د ګنې په شان پرې ترې چاپېره وي چې ډېرې ستغې او غوڅونکے وي - د پرېکولو يا رېبلو په وخت ډېر کلک نيوے شي چې په موټي کښې ښوئيدو سره غوڅه اونهٔ کړي - مثل غشے -

په نرمۍ به چا رقيب خپل کړے نهٔ وي

څکه بوټے د شر غشي زرهٔ ورنيسم (علي خان)

**شرغندويه** :- (شَ+ر+غَ+دو+يَه) [اس - مؤ] اورے - يو قسم باريکه غله - يو قسم شرشم

**شرغه** :- (شَ+ر+غ) (ق - اس - صف) هغه اس چې سترګې يا تندے ئې سپين وي

**شـرغه خېـل** :- (شَ+ر+غَ+خې+ل) (اس مـع) د ابـاخېلو وړه څانګـه ده چـې ، د کوزسوليزو ، بائيزي ، اکوزي يوسفزي دي -

**ـــ**:- **(ددغه)** (اس مع) د اتمان زيو وړوکې څانګه چې اوين زئ ، خوزه زي ، اکوزي ، يوسفزي دي -

**شرف** :- (شَ+رَ+ف) [ع - اس] عزت - بډائي - افتخار -

چې شرف غواړي جوهر بائدهٔ وي

دا پوچ سند دے که هسک نسب لري (سعيد)

**ـــ باريابي**:- (با+ر+يا+بي) (عف تر ، اس+مو) د چا (بادشاه يا امير وزير يا د بل کوم لوے سړي) په خدمت کښې د حاضرېدلو عزت-

**ـــ حاصلول**:- عزت حاصلول - د څهٔ کار په کولو عزت موندل - لکه ماد دے پاک کتاب د سريزې ليکلو شرف حاصل کړو -

**ـــ حاصلوول ، دملاقات**:- د چا لوے او عزتمند سړي سره په ليدو سره عزت موندل - ملاقات کول -

**ـــ موندل**:- عزت موندل - فخر حاصلېدل -

**ـــ ياب**:- (يا+ب) (عف تر - صف - مذ ، ج - ٥) هغه کس چې د څهٔ کار وغېره عزت ئې حاصل کړے وي -

**ـــ يابي**:- شرف موندنه - عزت موندنه - فخر حاصلېدنه -

**په ـــ ژوندون کول**:- په عزت سره وخت تېرول -

**شرفاء** :- (شُ+رَ+فا) (ع - ج) د شريف جمع ده - (و ـــ شريف)

**شرفت** :- (شَ+رَ+فَ+ت) [اس تصغير] د شرافت مخفف دے - نورو الفاظو سره راځي

**ـــ مند**:- (م+ن+د) (عپ تر - صف مذ ، ج - ان) د شرافتخاوند - شريف - شرافتواله

**ـــ مندانه**:- (مَ+دا+نَ) (عپ تر - تف) د شريفانو په شان - د شريفانو په ډول -

**شرق** :- (شَ+ر+ق) (ع - اس - مذ) د ختلو ځاے - ختيځ - د نمر (نور) د ختو ځاے هغه طرف چې نمر (نور) ترې راخيژي - نمرخاتهٔ - مشرق -

**ـــ بعيد**:- (بَ+عي+د) (ع تر - اس - مذ) هغه ملکونه چې د مشرق ملکونو په وېش کښې د يورپ د خلقو نه لرې واقع دي -

**ـــ وسطيٰ**:- (وُ+س+طا) (ع تر - اس مذ) د هغو ملکونو مجموعه کوم چې په منځني نمر خاتهٔ کښې واقع شي - (رنګ - مډل ايسټ) -

**ـــ لرے/لېرے**:- (ل/ لې+رے) (و ـــ شرق بعيد)

**ـــ نژدې**:- (ن+ز/ ژ+دې) (عپ تر - اس - مذ) هغه ملکونه چې د مشرق ملکونو په وېش کښې د يورپ خلقو ته نژدې واقع دي - (رنګ : نې يَرايسټ) -

**ـــ وسطي**:- (وَ+س+طي) (و ـــ شرق وسطي)

**شرقاً**:- (شَ+ر+قَ+ن) (ع - تف) د مشرق طرف ته - د مشرق په لور -

**شرقاً غرباً** :- (غَ+ر+بَ+ن) (ع - تف) نمر (نور) خاتهٔ طرف ته او نمر (نور) پرې واته طرف ته - مشرق طرف ته او مغرب طرف ته - د يو څيز په حقله وئيلے شي چې يو سر ئې قبلې طرف ته وي او بل سر ئې نمر خاتهٔ طرف ته - قبله په نور (نمر) خاتهٔ -

**شرق** :- (ش+رَ+ق) (اس صوت) د لښتې يا دکر وړې د ګزار اواز - سرک شرق

**شرقول** :- (ش+رَ+قَ+ؤ+ل) (مص) په لښته يا په کروړه وغېره وهل چې د شرق شرق اواز ترې پيدا کېږي په لښته يا کروړه وهل -

**شرقهار** :- (ش+رَ+قَ+ها+ر) (اس صوت) د شرق شرق پرله پسې اواز - شړقهار -

**شرقي** :- (شَ+ر+قي) (عف تر - صف) نمر (نور) خاته طرف سره تعلق لرونکے مشرق سره تړلے -

**ـــ خوراک**:- (خُ/خو+را+ک) (عف تر - اس - مذ ، ج - ونه) د نمر ختيځې علاقو د خلقو دخوراک څيزونه - يا اخلي پخلي ، پختن شيان وغېره -

**ـــ ډوډې**:- (ډو+ډَ+ې) (و ـــ شرقي خوراک)

**ـــ علوم**:- (عُ+لُو+م) (عف تر - اس جم) هغه علوم چې نمر (نور) خاتهٔ ملک يا ملکونو سره تعلق لري - مشرقي علوم - نور ختيځ علمونه -

**ـــ مطالعات**:- مُ+طا+ل+عا+ت) (ع تر - ا س ج) د شرق ملکونو يا قومونو په حقله د حالاتو مطالعې-

**شرقيه** :- (شَ+ر+قي+يَ) (ع - ص) شرقي - شرق - نمر (نور) خاتهٔ سره تعلق لرونکے -

**شرک** :- (ش+رَ+ک) (اس - مذ ، ج - ونه) برستن - نيالي [نيالي : نيالي هغه وي چې لاندې غوړوله شي او شيرک يا شرک يا برستن هغه چې پاسه په

وجود ارخورول شي ] - شپرک -

ـــــ :- (ش+رَ+ک) (اس: صوت) (۱) د چابک یا د شنې لښتې ګزار اوز - شرق شرق -

(۲) (ق) د زړۀ درزېدنه -

ـــــ **کېدل** ، د زړۀ :- د زړۀ په درزا کېدل - (د څۀ ناڅاپي پېښې له کبله ، زړۀ په ړ کېدل

ـــــ **ورکول** :- ګزار ورکول -

د تورو څوېو شرک ئې راکې

تر تېرې تورې ئې زیات غوځ کړې یمه (ټپه)

ـــــ :- (شَ+ر+ک) (ع - اس - مذ) شریکونه - اصطلاحاً خدا ے پاک سره په خداي یا خداي اختیاراتو کښې بل څوک یا بل څۀ شریکول -

ـــــ **جلّي** :- (جَ+ل+لي) (عف تر - اس - مذ) ښکاره - شرک - څرګند شرک -

ـــــ **خفي** :- (خَ+في) (عف تر - اس - مذ) پټ شرک - هغه شرک چې په ظاهر (شرک نۀ ښکاري - لکه بغیر د خدا ے پاک نه د بل چا نه دعا یا مراد غوښتل -

**شرکاء** :- (شَ+رَ+کا) (ع - اس ج) د "شریک" جمع ده - شراکتیان - په څۀ معامله کښې شریک وګړي - ملګري -

**شــــرکت** :- (شِ+ر+کَ+ت) (ع - اس - مــذ ، ج - ونــه) شــریکولي - شــریکي - شریکېدنه شاملېدنه - شراکت -

ـــــ **کول په څۀ کښې** :- (۱) په څۀ کښې یا ډله کښې شاملېدل - (۲) په غم یا ښادۍ کښې شریکېدل -

ـــــ **تجاراتي** :- (ت+جا+رَ+تي) (عف تر - مذ ، ج - ونه) په تجارت یا کاروبار کښې د ګڼو کسانو سرمایه لګول -

**شرکتي** :- (شِ+ر+کَ+تي) (اس - مذ - ج - ان) شریک کېدونکے - شراکتي -

**شرکهار** :- (شَ+رَ+ک+کَ+ها+ر) (اس صوت) د شنې لښتې یا د کروړې وغېره د ګزار - اواز چې پرله پسې راځي - د لښتې یا د کروړې وغېره د بې واره بې واره ګزارونو اواز - شرقهار - شرقهار -

**شرکې** :- (ش+رَ+کې) [اس - مذ] (و---- شرکهار)

**شرګې** :- (شَ+رَ+ک+کيَ) (اس مع) د پښتنو قبیله ده چې ګلګۍ یو ښاخ دے چې ادم خېل افریدي دي - باش خېل ، او مبارک خېل ، د شرکیو ښاخونه دي - په دې کښې هر یو قبیله نورې څانګې لري - (۱) عزیر خېل ، بازید خېل ، مجید خېل ، شرین کور او زلیکا کور د باس خېل، څانګې دي - (۲) ملا کور او افضل کر د مبارک خېل څانګې دي - (په بله شجره کښې باش خېل او مبارک خېل سره تاشي خېل هم لیکلے دے -

**شرم** :- (شَ+ر+ر+م) (ف - مذ ، ونه) (۱) حیاء - حجاب -

د ژوندیو د زړۀ رنځ دے د مړو شرم

په ژوندون د بابا ورشه تر لحده (خوشحال)

(۲) لنګ - عار - (۳) ندامت - شرمندګي - (۴) عزت - ابرو -

ـــــ **اړول** ، **ور** ، **در** ، **را** :- بې ابروئي کول - په عزت حمله کول - سپکاوے کول -

ـــــ **الود** :- (ا+لُو+د) (ف تر - صف ، مذ ، مو - ه) شرم سره تړلے - حیاناک - د حیا نه ډک -

ـــــ **اور بدل (چاته)** :- (۱) غېرت راولاړېدل - د شرم په وجه د څۀ کار نه باز راتلل - (۲) د شرم او غېرت له کبله څۀ کار کول -

ـــــ **پټوول** :- د شرم په څۀ کار پرده اچول -

ـــــ **پرده** :- (پَ+ر+دَ) (فپ تر - مو ، ج - دېې) عزت او ابرو - د زنانهٔ په حقله وئیلے شي

**خدا ے دې ـــــ پرده ساته! یا لره** :- (دعائیه جمله) (زنانه) خدا ے دې عزت او ابرو وساته - خدا ے دې بې پردې کوه مه -

ـــــ **پورې کول** :- تهمت لګول - تور پورې کول - د زنانهٔ وغېره خراب الزام لګول -

ـــــ **جن** :- (ج+ن) (پ تر - صف - مذ ، ج - ه) حیاناک - شرمېدونکے - سرمناک - شرم دار -

ـــــ **ځاے** :- د شرم ځا ے پټول حکم د مانځۀ دے

چې مونځ به ئې صحیح شینه

د مېړۀ شرم ځا ے له نامه تر زنګنه دے

د عورتې شرم ځا ے واړه تن دے (روښاني رساله)

ـــــ **دار** :- (دا+ر) (و---- شرم جن)

ـــــ **دے** :- (۱) د بې عزتۍ باعث دے - ډېر بې حیا دے لکه فلانے خو د قبیلې د پاره شرم دے - (۲) د عزت باعث - یا د عزت دار و مدار لکه دا کس اوس زمونږ شرم دے -

ـــــ **ژغورل** :- د شرم و حیا خیلا ساتل -

هندو هم د باطل درم و شرم ژغوري

تۀ له حق حیا نۀ کړې بد کیشه (حمید)

ـــــ **سنبالول** :- مجازاً - کوژدن کړې پېغله وادۀ کول -

ـــــ **غورځول** :- بې شرمه کېدل - بې حیا کېدل - د بې شرمۍ او بې عزتۍ کارونه کول - لکه سړیه! تا خو هسې شرم غورځولے دے -

ـــــ **کول** :- په څۀ کار کښې شرم محسوسوول - شرم ورتلل - حیا مخې ته راتلل - شرمېدل -

ـــــ **ګاه** :- (ګا+ه) (ف تر - مذ ، ج - ونه) د شرم ځا ے - په بدن کښې هغه ځا ے چې ښکاره کول ئې بې شرمي او بې حیاۍ ګڼلے شي - د ورو او لویو بولو ځایونه خصوصاً د زنانه و - د ورو متیازو ځا ے -

ـــــ **ګیر** :- (ګي+ر) (فپ تر - صف ، مذ ، مو - ه) شرم کوونکے - حیاناک -

ـــــ **ګین** :- (ګي+ن) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) شرم جن - له شرمه ډک - شرمنده - وایه من

ـــــ **لرل** :- د شرم او حیا جذبات لرل -

ـــــ **ناک** :- (نا+ک) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) (۱) شرم واله - حیاناک - حیادار - وایه دار - (۲) شرمنده کوونکے - د بې حیاۍ کار وغېره - (۳) د شرم د بې عزتۍ - ډېر سپک -

په تخته باندې بیرون شي له حجابه

شومناک او شرمسار ددې دنیا (رحمان)

ـــــ **نغښتل** :- (۱) (و------ شرم پټول) - (۲) په حیا عزت څۀ کار کول - لکه کوژدن کړې جینۍ وادۀ کول -

ـــــ **ورتلل** :- په څۀ کار یا خبره کولو کښې شرم و حیا محسوسوول - لکه ماله شرم راځي (د افغل را - در او ورسره راځي) -

**په ـــــ اړ نه دے** :- د شرم یا د عزت خیال نه ساتي -

که ئې پلار نیکه له ځایه بادشاهان وي

نه دې پلار نه دې نیکه په شرم اړ دے (خوشحال)

**په ـــــ نه اړ کېدل** :- د شرم حیا او عزت خیال نه ساتل -

نه د دین د چارې شناخت مهر وفا شته

نه په شرم ننګ څوک اړ دي د دنیا (خوشحال)

**د ـــــ توپه** :- (تو+پَ) (فپ تر - اس - مؤ - ج - تپې) (۱) ډېر حیا ناک - غېرتي - (دا لغت اضداد دے) - (۲) هغه کس (نر یا ښځه) چې د بې شرمۍ کار یا کارونه کوي -

**د ـــــ توکرې** :- ډېر بې شرمه - ډېر بې حیا - د بې غېرتۍ او بې شرمۍ ډېر کارونه کوونکے -

د ــــ ځاے:- په بدن کښې هغه ځاے چې پټوولے شي د ورو او لويو بولو ځايونه د شرمندګۍ او خجالت موقع يا کار۔

د ــــ خبره/کار دے:- د شرمنده کېدلو خبره کار دے۔ د خجالت خبره يا کار دے۔ د شرمندګۍ کار يا خبره۔

ډېر ــــ دے:- دا کار يا معامله د ډېر شرم باعث دے دا د ډېرې بې غېرتۍ کار دے۔

**شرمبي**:- (شَ+رَ+مَ+بَ+ي) (ق اس-مو) د مستو د شاربلو نقش دار خاورين لوښے د وښي۔ کونجۍ۔

**شرمخ**:- (ش+ر+م+خ) (اس-مذ ، ج-ان) مشهور شلوونکے ځناور۔ شرمښ۔ ګرګ

ــــ سيرت:- (سي+ر+ت) د شرمخ په شان عادتونه لرونکے۔ شلوونکے۔ داړونکے۔

بې صرفې بوتۍ راکاږي د خورانو
هر سړے شرمخ سيرت سګ ديوانه دے (حافظ)

**شرمخانو**:- (ش+ر+مَ+خا+نو) د "شرمخان" اضافي او مجروري شکل دے۔

د ــــ لارې بندول:- د شګو بند جوړول۔ ناکاميابه بنديزونه لګول۔

**شرمسار**:- (شَ+رَ+م+سا+ر) (ف تر-صف ، مذ ، مو-ه) شرمنده۔ کچه پيکه کړې

په تخته باندې بيرون شي له حجابه
شرمناک او شرمسار ددې دنيا (رحمان بابا)

ــــ کېدل:- شرمنده کېدل۔ کچه کېدل۔ پيکه کېدل۔ خړ کېدل۔

استغفار په خوله په زړۀ د شر فکرونه
بيا له خپله استغفاره شرمسار شم (خوشحال)

**شرمساري**:- (شَ+رَ+م+سا+ري) (ف تر-اس-مو) شرمندګي۔ خړوالے۔ خجالت۔

**شرمښ**:- (ش+ر+م+ښ) (اس-مذ ، ج-ان) شرمخ۔ مشهور شلوونکے ځناور ګرګ

ــــ ښېږي:- (ښي+ږ+ي) (ق-اس-مو) د شرمخ ښېنتے۔

**شرمښکي**:- (شَ+ر+م+خ/ش+کَ+ي) (اس-مو) چرمښکۍ۔ د کر بوړو د قسم يو ځناور په کورونو کښې عام ليدے شي۔ مارخورۍ۔ (ګن)۔

**شرمندتيا**:- (شَ+ر+مَ+ن+د+ت+يا) [اس-مؤ] (وــــ شرمندګي)

**شرمندګي**:- (شَ+ر+م+ن+دَ+ګي) (ف-اس-مو) شرمنده کېدنه۔ خجالت۔ شرمندګي۔ ندامت۔ کچه کېدنه۔ (د شرمندګۍ تيز د سُوپړې په سر وي۔ (متل)

**شرمنده**:- (شَ+ر+مِ+ن+دَ) (ف-صف) (۱) شرم وهلے۔ خجله۔ کچه پيکه۔ (۲) نادمه۔ پښېمانه۔

حافظ بې حد ګنهګار دے شرمنده سر ښکته
که ئې حيا د داړو کونو پهلوان وساتي (حافظ)

ــــ کول:- شرمول۔ کچه کول۔ پيکه کول۔ پښېمانه کول۔

ــــ کېدل:- شرمېدل۔ پيکه کېدل۔ کچه کېدل۔ پښېمانه کېدل۔ خجله کېدل۔

**شرموښ**:- (شَ+ر+مو+خ/ش) (وــــ شرمښ)

**شرمول**:- (شَ+ر+مَ+ؤ+ل) (مص مت) (۱) شرمنده کول۔ پيکه کول۔ کچه کول۔

د ګلونو هار په غاړه د دلبرو
شرموي لعل و ياقوت لولو للاهم (خوشحال)

(۲) ذليل کول۔ بې عزته کول۔ (۳) بد کاري کول۔ (چاسره)۔ (۴) بدنامه کول۔ تور پورې کول۔

ــــ ځان:- (ځ+ا+ن) د بې حياۍ نه کار اخيستل۔ ځان بې شرمه کول۔

ــــ قام:- داسې خراب د شرم کار کول چې ځان سره خپل قام هم وشرمه وي۔

**شرمولے**:- (شَ+ر+مَ+ؤ+لَے) (اس مف ، ج-لي) (۱) شرمنده کړے۔ کچه کړے۔ (۲) بې عزته کړے۔ ذليل کړے۔ (۳) بدنامه کړے۔

**شرمونګ**:- (شَ+ر+مَ+ؤ+ن+ګ) [او-حمص] (وــــ شرمونه)

**شرمونه**:- (شَ+ر+مَ+ؤ+نَ) (حمص) (۱) شرمنده کوونه۔ کچه کوونه۔ پيکه کوونه۔ (۲) بې عزته کوونه۔

**شرمونکے**:- (شَ+ر+مَ+وُو+ن+کَے) (اس فا-مذ ، ج-کي) (۱) شرمولو واله۔ شرمنده کوونکے۔ (۲) بې عزته کوونکے۔ (۳) بدناموونکے۔ تور پورې کوونکے۔

**شرمونه**:- (شَ+ر+مو+نَ) (اس-ج) د سرم جمع ده۔ (وــــ شرم)

ــــ شرمول:- ډېر زيات د بې عزتۍ کار کول۔ ډېر زيات سپک کار کول۔

**شرمه**:- (شَ+ر+مَ) د "شرم" اضافي يا مجروري شکل دے۔

ــــ د:- (دَ)۔.....................

ــــ له:- (لَ)۔ د شرم ، خجالت۔ د ندامت په سبب۔

د ــــ سترګې ښکته نيول /اچول:- د شرمندګۍ له کبله پورته نه کتل۔ ډېر خجله او نادمه "بودل"۔

**شرمے**:- (شَ+ر+مے) (اس-فا ، ج-مي) شرمولو واله۔ شرموونکے۔ عموماً نورو الفاظو سره راځي۔

ــــ قام:- (پ تر-اس-مذ ، ج-مي) هغه کس چې د خپل ځني سپک يا د شرم کار په حقله ټول قام شرموي۔ د قام شرموونکے۔

**شرمېدل**:- (شَ+ر+مې+د+ل) (مصً) (۱) شرمنده کېدل۔ کچه کېدل۔ خجل کېدل (۲) حيا ور تلل۔ (۳) بې عزته کېدل۔ ذليل کېدل۔

**شرمېدلے**:- (شَ+ر+مې+د+لے) (اس-مف ، ج-لي) (۱) شرمنده شوے۔ کچه شوے۔ خجل شوے۔ (۲) بې عزته شوے۔ ذليل شوے۔ (۳) بدنام شوے

**شرمېدنګ**:- (شَ+ر+مې+د+ن+ګ) [ق-حمص] (وــــ شرمېدنه)

**شرمېدنه**:- (شَ+ر+مې+د+نَ) (حمص) (۱) حيا ورتلنه۔ (۲) ندامت۔ پښېماني۔ خجالت۔

**شرمېدونکے**:- (ش+ر+مې+دُو+ن+کَے) (اس-فا-ج-کي) حياناک۔

**شرمېدۀ**:- (شَ+ر+مې+د) (حمص) (وــــ شرمېدنه)

**شرمينګي**:- (شَ+ر+مي+ن+ګي) (اس-مو) (د شرمندګۍ بدل شکل دے) شرمندګي۔ خجالت۔ د شرمينګۍ تيز د سوپړې په سر وي (متل)۔

**شرنګ**:- (ش+رَ+ن+ګ) (اس صوت) (۱) د دهات (فلز) نه جوړ شوي ځيزونو اواز۔ (۲) د تورو د جنګېدو اواز (۳) د ګنګروګانو اواز۔ (۴) د رباب د تار اواز۔ (۵) (ق) مجازاً د ماشومانو د سبق لوستلو اواز۔

ــــ د روپو کېدل:- روپۍ بهر ته رايستل او خرڅ کول۔

ــــ د روپو کېدل:- روپۍ بهر ته راوتل او خرڅ کېدل۔ لکه په لپو د وېرو نشي ځو شرنګ د روپو نه شي (متل)

ــــ شرنګ:- (ش+رَ+ن+ګ) (اس صوت) د کالو ، تورو ، جرسونو يا نور داسې د دهات د ځيزونو په خپله کښې د جنګېدو اواز۔

ــــ کول:- (۱) د شرنګ اواز کول (۲) (ق) د ماشومانو په زوره زوره د سبق وئيلو اواز کول۔ يا په زوره زوره وېنا سره سبق يادول۔

ــــ کېدل:- (مص تر) (۱) د شرنګ اواز ختل۔ د ځۀ ځيز نه د شرنګ په شان اواز پيدا کېدل (۲) (ق) د ماشومانو په زوره زوره د سبق اواز راتلل۔

په ــــ سبق وئيل:- د ماشومانو په زوره زوره او په جمع سبق وئيل۔

ــــ شرونګ:- (ش+رُو+ن+ګ) (اس صوت) شرنګهار۔ د کالو وغيره اواز ، د جرس يا جرسونو اواز۔ شرنګ۔ شرنګ۔ شرنګ شرونګ۔

په ــــ شرونګ:- په درز دروز۔ په ډنګ ډونګ۔ په نمائش او بين باجو سره۔

لکه په شرنګ شرونګ وادهٔ کول -

**شرنګا** :- (ش+رَ+ن+ګا)(اس صوت) د شرنګ اواز - شرنګهار - شړنګهار -

**شرنګاني** :-(ش+رَ+ن+ګا+نې) (اس - مذ ، ج - نې) د ماشومانو د غړولو اله - چنچڼې - شرنګاوو - جړنګاني -

**شرنګاوو** :- (ش+ر+ن+ګا+وو) (اس ، مذ ، ج - ګان) چنچڼې - د ماشومانو د غړولو اله جړګانې - شرنګانې -

**شرنګنی** :- (ش+رَ+ن+ګَ+نی) [اس - مذ] (و---- شرنګاني)

**شرنګول** :- (ش+رَ+ن+ګَ+ؤ+ل) (مص مت) (۱) د دهاتي (فلزي) شیزونو نه په خپله کنبې یا بل کوم شیز سره په جنګولو اواز ویستل - (۲) توري سره جنګول - د تورو ن د شرنګ اواز ایستل - (۳) ګنګروګانو ، جرس یا د کالو وغیره نه اواز ایستل - (۴) د رباب یا بل کوم تاریز ساز غږول -

**شرنګونګ** :- (ش+رَ+ن+ګَ+ؤ+ن+ګ) [ق - حمص] (و---- شرنګونه)

**شرنګونه** :- (ش+رَ+ن+ګَ+ؤ+ن) (حمص) (۱) د شرنګ شرنګ اواز ویستنه - (۲) د رباب وغیره (تارونو واله ساز) غږونه - (۳) د جرس یا د ګنګروګانو نه اواز ویستنه -

**شرنګونکی** :- (ش+رَ+ن+ګَ+وُ+ن+کَی) (اس فا - ج - کي) (۱) د کوم فلزي شیز نه د شرنګ شرنګ اواز ویستونکی - (۲) رباب یا بل کوم تاریز ساز غږوونکی -
(۳) جرس وهونکی - (۴) ګنګروګان غږوونکی -

**شرنګهار** :- (ش+رَ+ن+ګَ+ها+ر) (اس صوت) د شرنګ شرنګ اواز - شرنګار - د کالو تورو ، جرسونو یا د داسې قسم د دهات نه جوړ شوي شیزونو په خپله کنبې د مسلسل جنګېدلو اواز - شړنګهار -

**شرنګی** :- (ش+رَ+ن+ګَی) (اس صوت) (و------ شرنګ)

**شرنګېدل** :-(ش+رَ+ن+ګې+د+ل) (مص لا) (۱) د شرنګ شرنګ اواز کول - د دهات (فلز) نه جوړو شیزونو په خپله کنبې یا څهٔ شیز سره په جنګېدلو اواز کول - (۲) د ګنګروګانو ، جرس ، یا ، د کالو وغیره نه اواز وتل -

**شرنګېدنګ** :- (ش+رَ+ن+ګې+د+ن+ګ) [ق - حمص] (و---- شرنګېدنه)

**شرنګېدنه** :- (ش+رَ+ن+ګې+د+نَ) (حمص) د شرنګ شرنګ اواز کوونه - شرنګهار کول

**شرنګېدونکی** :- (ش+رَ+ن+ګې+دُو+ن+کَی) (اس فا - ج - کي) (۱) شرنګ شرنګ کوونکی - د شرنګ شرنګ اواز کوونکی -(۲) توری - دهاتي (فلزي) شیزونو ، وغیره په خپله کنبې جنګېدونکی - (۳) غږېدونکی - د تاریز ساز لکه رباب -

**شروا** :- (ش+رُ+وا) (ه - اس - مو ، ج - ګانې) ښورا - د غوښې د انګولي اوبه - شېروا خورا -

**شروپ** :- (ش+رُو+پ) [اس صوت] (و---- شړپ)

**شروت** :- (ش+رو+ت) (اس - صف ، مذ ،مو - ه) تروه - مېوه -

**شروط** :- (شَ+رو+ط) (ع - ج) د "شرط" (عربي) جمع ده - شرطونه شرائط -

**شروع/شورو** :- (شُ+رو+ع) (شُ/شو+رو+ع) (ع - اس - مو ، ګانې/ات) (۱) اغاز پېل - ابتداء ، رومبی سر - (۲) د چارشنبې ورځ - (د شروع لفظ عموماً شورو کولی شي)

**---- کول**:اغاز کول - پېل کول - ابتداء کول - لاس پورې کول بِسم الله کول-

**---- کونه**:-(کَ+ؤ+نَ) (حمص) اغاز کوونه - ابتداء کوونه - لاس پورې کوونه-

**---- کوونکی** :-(کَ+وُ+ن+کی) (اس نا ، مذ ، ج - کي) اغاز کوونکی - ابتداء کوونکی - لاس پورې کوونکی-

**---- کېدل**:- (۱) په څهٔ کار شورو کول - بِسم الله کېدل - اغاز کېدل -(۲) لګیا کېدل - لکه په کنځلو یا بدو ردو شروع شو - راسر کېدل-

**---- کېدونکی** :- (کې+دُو+ن+کی) (اس مف - ج - کي) هغه کار وغیره چې اغاز ئې کېدونکی وي یا پرې لاس پورې کېدونکی -

**---- نه تر اخره (پورې)**:- (۱) اول سرنه تر وروستني سره پورې - د اغاز نه تر انجامه پورې - د سر نه تر اخره - (۲) ټول - سیمه - تمامي -

**---- په کنبې**:- په اول سر کنبې - په اغاز کنبې - په ابتداء کنبې -

**د ---- نه**:-(۱) د اول سرنه - د اغاز نه - (۲) د پخواني وختونو راسې -

**---- بنه**:- (خ/شَ) بنهٔ اغاز - ښکلې ابتداء -

**شروعات** :-(شُ+رُو+عا+ت) (ع - ج) د "شروع" جمع ده -

**---- کول**:- شروع کول - پېل کول - شورو کول - لاس پورې کول - بِسم الله کول -

**---- کېدل**:- اغاز کېدل - شورو کېدل - شروع کېدل - ابتداء کېدل - بِسم الله کېدل

**شروګی** :- (ش+رو+ګی) [اس - مذ] (۱) د یو ګل نوم دی - سپین رنګ لري - (۲) یو قسم غرئیز بوټی دی - وابنهٔ - د څارویو خوراک دی -

**شرونډی** :- (شَ+ر+وَ+ن+ډَی) (اس - مذ ، ج - ډي) د فوځ هغه برخه چې د نور فوځ نه وړاندې ځي پېش قدم اول (دسته) مخ ځرک -

**شرونګ** :- (ش+رو+ن+ګ) [اس صوت] (و---- شرنګ)

**شرونه** :- (شَ+ر+ؤ+نَ) (ق اس - مو) ازغکی - اغزکی -

**---- ژاوله**:- (ژا/ژا+و+لَ) (ق - اس - مو) د یوې ونې سلیښ دي چې د زخمونو دپاره پکارولی شي -

**شرووات** :- (ش+رُو+وا+ت) د شروغات بدل شکل دی - (و------شروغات)

**شرهار** :- (شَ/شِ+ر+رَ+ها+ر) (اس صوت) د اوبو اوچت ځای د راخلاصېدو اواز شړهار -

**---- وهل**:د اوبو وغیره د شر شر په اواز سره د بره نه راغورځېدل -

**شری** :- (ش+رَی) (اس - مذ ، ج - ي) د ماشومانو یوه بیماري چې په بدن ئې نری نری دانې وخیژي - خسره -

**---- ختل**:د شري په مرض اخته کېدل - د ماشوم په بدن نری نری دانې راختل -

**---- کېدل**:- د ماشوم د شري په مرض اخته کېدل - شري دانې ختل -

**---- کېدل** :- څهٔ خوي خصلت یا کوم مرض د یو خاندان په ختمه کنبې اغږلی کېدل - لکه توره ، مېړانه ، بخښنه وغیره د پښتنو شری شوی دی -

**---- نیول**:- (ق) (و---- شری ختل)

**شري** :- (شَ+ر+ري) شرپسند - جنګ خوښوونکی - فساد جوړوونکی - فسادي لکه فلانی شري سړی دی -

**شریان** :- (ش+ر+یا+ن) (ع - مذ ، ج - ح - ونه/ شرایین) د وینې هغه رګ چې د زړهٔ نه صفا شوې وینه بدن ته رسوي - ټوپ وهونکی رګ - لویژی رګ-

**---- شلېدل**:- د سرې وینې رګ شلېدل -

**---- د سربیو**:- (دَ+س+ګ/ژ+یو) (فپ تر - اس مذ) هغه شریاني رګ چې په سربیو کنبې تېرېږي -

**شریاني** :- (شَ+ر+یا+نې) (صف - مو) هغه څهٔ چې شریاني سره تعلق لري - (شریان سره متعلق -

**شریپه** :- (ش+ري+پَ) (ق - اس - مو ، ج - پې) هغه دیوالګی کوم چې د کوټې په چچه خېژولی شوی وي -

**----**:- (شَ+ري+پَ) (اس - مو ، ج - پې) شریفه - مشهوره مېوه -

**شرېدل** :- (شَ+رې+د+ل) (و---- شوربدل)

**شریر** :- (شَ+ري+ر) (ع - صف مذ ، ع ج - اشرار) (۱) شر خوښوونکی - فسادي - مفسد - (۲) وران کاری - وران کارونه کوونکی - شرارتونه کوونکی-

**شریش** :- (شَ+ري+ش) (ه - اس جم) (۱) سرېښ - سلېښ - سرېښ - (۲) د سرېښ ونه - د سرېښ د ونې لرګی ګونه یا تخم -

**شریعت** :- (شَ+ري+عَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه)د شرع قوانین - شرع

اسلامي قوانین او احکام -

تــه مـطیع د شـریعت شــه لکه بنائي

که خپل ځان غواړې د نور عالم مطاع (سعید)

ـــ **کول**:- د څهٔ جګړې یا مقدمې فیصله د شریعت مطابق غوښتل یا کول -

**شـریف** :- (شَ+ري+ف) (ع-صـف ، مـذ ، مـو-ه ، عرج:اشـراف) (۱) شـرافت لـرونکے - لـوړوالے لـرونکے - (۲) د اصـیل خانـدان - خانـداني - نجیـب (۳) ښهٔ سړے - چې جنګ جګړه نهٔ خوښوي - (۴) د عزت او تنظیم دپاره ځینو نومونو نه وروستو راوړے شي - لکه: بیت الله شریف قران شریف -(۵) د مسلمانانو د نوم برخه -

ـــ **او رذیل**:- (اَ+و+رَ+ذي+ل) شریف سړي او سپک سپاندے سړي - اعلیٰ خلق او ادنیٰ خلق - نیک وبد هر قسم خلق -

ـــ **زاده**:- (زَ+دَ) دشریف (سړي) نه پیدا شـوے - یا د شـریف خانـدان اولاد - خانداني اصیل زاده -

**شریف خیل** :- (شَ+ري+ف+خیـل) (اس مع) د پښتنو قبیله ده چې د جوړخیلو یوه څانګه ده او جوړخیل ، بروټي ، دولت زئ ، اورکزئ دي -

ـــ:- (**ددغه**) (اس مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې د حکیم خیلو څانګه ده او حکیم خیل ، مبارک شاهي ، علي زاد داوړ دي -

**شریفه** :- (شَ+ري+فَ) (ه-اس-مو ، ج-فې) د مشهورې میوې نوم -

**شریفانه** :- (شَ+ري+فَا+نَ) (تف) شریفانو په شان - د شریف سړي په شـان - د شریفانو په طریقه -

**شـریک** :- (شَ+ري+ک) (ع-صـف ، مـذ ، مـو-ه) (اس-مـذ ، ج-ان-عـرج- شرکاء) په څهٔ معامله - کار وغیره کښې نورو سره ملګرے شامل - ګډ-

په شریکان ئې وو ، که اوس دي

پــه دا کــل کــښې داخــل (سعید)

ـــ **جرم**:- (جُ+ر+م) (عف تر-صف-مذ) په جرم کښې شریک - په کوم جرم یا بدکار کښې چاسره برخه اخستونکے -

ـــ **حال**:-(حا+ل) (عف تر-صف) د چا په نیک و بد کښې شریک - په غم ښادۍ کښې ملګرے -

ـــ **راے**:-(را+ے) (عف تر-صف) د چا سره په راے کښې شریک چا - سره یو شان راے لرونکے -

ـــ **کول**:-(وــــ شریکول)

ـــ **والي**:-(وا+لي)

ـــ **ولي**:-(وَ+لي) (عپ تر-اس-مو) شریکتوب - شراکت - شاملیدنه - ګډون - ملګرتیا

**اریک ـــ نهٔ لرل**:- هیڅ شریکوال نهٔ لرل - بیخي څوک شریک نهٔ لرل - یواځې یک تنها "بودل" -

**شریکه** :- (شَ+ري+کَ) (صف-مو-ج-شریکې) د شریک مؤنث دے -

ـــ **پوله**:-(پُو+لَ) هغه پوله چې د دوهٔ کسانو د پټو تر مینځه وي - د جګړې سبب - د شر فساد باعث -

**پټے پوله ـــ نه "بودل"**:- د دوهٔ کسانو یا ډلو په مینځ کښې د جنګ جګړې یا دښمنۍ څهٔ بانه "بودل" -

ـــ **په** :- په ګډه - په جمع سره -

ـــ **دحیات**:-(دَ+حَ+یا+ت) (فپ تر-اس-مو) د ژوند شریکه - کنایتاً ښځه - ماندینه -

**شریکوال** :-(شَ+ري+ک+وا+ل) (عپ تر-صف ، مذ ، مو-ه) شراکتي - شرکتي - برخه لرونکے - ملګرے شامل - ګډ -

**شریکول** :- (شَ+ري+کَ+ؤ+ل) (مص مت) شاملول - په څهٔ کار یا معامله کښې ځان سره ملګرے کول - حصه دار کول -

**شریکونګ** :- (شَ+ري+کَ+وَ+ن+ګ) [ق-حمص] (وــــ شریکونه)

**شریکونه** :-(شَ+ري+کَ+ؤ+نَ) (حمص) د شریکولو کار - شاملونه - ګډونه -

**شریکوونکے** :- (شَ+ري+ک+وُ+ن+کے) هغه چې بل څوک ځان سره په څهٔ کار ، معامله یا ډله کښې شاملوي -

**شریکېدل** :- (شَ+ري+کې+د+ل) (مص لا شاملېدل - (ور) ګډېدل - په څهٔ کار یا معامله کښې چاسره ملګرے کېدل ، حصه دار کېدل-

**شریکېدنګ** :- (شَ+ري+کې+دَ+ن+ګ) [ق-حمص] (وــــ شریکېدنه)

**شریکېدنه** :- (شَ+ري+کې+د+نَ) (حمص) شاملېدنه - په څهٔ کار ، معامله یا ډله وغیره کښې نورو سره حصه دار کېدنه -

**شریکېدونکے** :- (شَ+ري+کې+دُو+ن+کے) شاملېدونکے - په څهٔ کار ، معامله یا ډله وغیره کښې نورو سره شاملېدونکے - ورګډېدونکے -

**شړ** :- (شَ+ړ)(صف-مذ ، مو-ه) (د شاړ مخفف دے) (۱) شاړ - شډل - (۲) غیر اباده - (کور کلے)(۳) غیر اباده زمکه چې کرکرونده پرې نهٔ کیږي - بنجر -(۴) بې فائدې - بې حاصله (ق) -

**شړ** :- (توب) (تو+ب) شاړوالے - غیر ابادي - بې حاصل توب -

ـــ **کول**:-(۱) شاړه ول - بنجرول - (۲) (کور کلے وغیره) خوشے کول - غیر اباده کول-

ـــ **کېدل**:- (وــــ شړېدل)

ـــ **والے**:- (وا+لَے) د شړ یا شاړ کېدلو حالت - بنجر والے - غیر ابادي -

ـــ:- (شَ+ړ) (اس-مذ ، ج-ونه) د نل یو قسم دے چې د ننه نه ډک وي شرغشے - شل غشے -

ـــ:- (شَ+ړ) (اس صوت) (۱) د اوبو (نلکې وغیره نه) د بهېدولو اواز. (۲) په وله کښې د اوبو په تېزۍ سره د بهېدو اواز -

ـــ **شړ**:-(شق+ړ) (اس صوت) (۱) داوبو په زور سره په زمکه یا بل څهٔ څیز ډ راخلاصېدو اواز -(۲) په واله کښې د تېزو اوبو د بهېدو اواز -

**شړاپ** :- (ش+ړا+پ) (اس صوت مذ) شړپ - د نمرۍ وغیره په خولهٔ کښې د وهلو اواز - د خولې شړپ ، د ګیډې ویر - (متل) -

**شړاپ** :- (ش+ړا+پ) (اس صوت) د څهٔ څیز په اوبو کښې د غورځېدلو اواز - شړپ

ـــ **شـړاپ**:- (=ش+ړا+پ) د شړپ شړپ - اواز - په اوبو کښې د څهٔ څیز (یا څیزونو پرله پسې د پرېوتو اواز) - په اوبو یا خټه کښې د پښو وهلو اواز -

**شړاوه** :- (شَ+ړا+وَ) (اس-مو-ج-وے) اُوبړۍ - د اوبو په سرچه کوم د رېښمو په شان شنه ماده ګرځي - چوپړۍ - شړاوه -

**شـړپ** :- (ش+ړ+پ) (اس صوت) (۱) د اوبـو د راخلاصـولو اواز - شـړاپ - (۲) د جامې بدن سره د لګېدو اواز - (لکه:- د تېز باد په وجه)

**شړپ** :- (ش+ړَ+پ) (اس صوت) (وــــ شړپ)

ـــ **شړپ کول**:- د جامې باد سره په تګ کښې ، د بدن سره د لګېدو اواز - لکه هغه په لاره ځي او پینځه ئې شړپ شړپ کوي -

ـــ **شـړپ کېدل**:- د شړپ شړپ اواز راتلل - لکه په اوبو کښـې د څهٔ څیز د خوځېدو یا وهلے کېدو اواز یا په اوبو یا نرمه خټه کښې د تللو یا د پښو اواز -

ـــ **شـړوپ**:- (=ش+ړُو+پ) (اس صوت) (۱) د اوبـو د غورځېـدلو یـا پـه اوبـو کښې د څهٔ څیز د پرېوتو اواز - (۲) په اوبو خټو کښې د تللو یا د پښو وهلو اواز - (۳) د اوبو د چپو (لهرونو) په خپله کښې د جنګېدلو اواز-

ـــ **شړوپ جوړول**:- په اوبو کښې لاس ، پښې یا بل څهٔ څیز د وهلو یا زور سره د خوځولو په ذریعه د شړپ شړپ اواز ایستل -

ـــ **شړوپ کول**:- (وــــ شړپ شړوپ جوړول)

**شړپا** :- (ش+ړ+پا)

**شړپار** :- (ش+ړَ+پا+ر) (اس صوت) د شړپ شړپ یا د شړپ شړوپ اواز-

**ـــــ ختل**:د شړپ شړپ اواز راتلل -

**شړپول** :- (ش+ړ+پَ+ؤ+ل) (مص مت) په اوبو یا اوبخن (مائع) څیز کښې لاس یا بل څۀ څیز وهلو سره د شړپ شړپ شان اواز پیدا کول - رپول -

**شړپولے** :- (ش+ړَ+پَ+ؤ+لے) (اس - مف ، ج - لي) (۱) څۀ مائع څیز چې په کښې لاس (یا بل څۀ څیز) په زوره زوره خوځولے شوے او د شړپ شړپ اواز ترې وښکلے شوے وي - (۲) نرمه خټه وغیره چې په کښې پښې وهلې شوې وي -

**شړپونه** :- (ش+ړَ+پَ+ؤ+نَ) (حمص) په اوبو یا بل مائع څیز کښې لاس (یا بل څۀ څیز) په زوره زوره وهنه (چې د شړپ شړپ اواز ترې پیدا شي)

**شړپوونکے** :- (ش+ړ+پَ+وُو+ن+کے) (۱) هغه کس چې په څۀ مائع څیز کښې لاس یا بل څۀ څیز په تېزۍ سره خوځوي چې دغې مائع نه د شړپ شړپ اواز پیدا شي - (۲) په نرمه خټه وغیره کښې پښې وهونکے - (۳) معامله خرابوونکے -

**شړپه** :- (ش+ړ+پَ) (حمص) (۱) شړپېدنه - د شړپ شړپ اواز - (۲) مجازاً: د چا مال بې دردۍ سره لګول - (ظفر)

**شړپهار** :- (ش+ړ+پَ+ها+ر) [اس صفت] (و---- شړپا)

**شړپے** :- (ش+ړ+پے) (و---- شړپا)

**شړپېدل** :- (ش+ړ+پې+د+ل) (مص) (۱) په مائع څیز کښې لاس (یا بل څۀ څیز) په زوره زوره وهلے کېدل (چې د شړپ شړپ اواز ترې پیدا شي) - (۲) دمائع څیز په لوښي کښې رپېدل او لوښي نه توئېدل -

**شړپېدلے** :-(ش+ړ+پې+د+لَے) (اس مف ، ج - لي) (۱) هغه مائع څیز چې په کښې لاس یا بل څۀ څیز (زر زر او په زوره زوره) وهلے شوے وي- (۲) رپېدلے -

**شړپېدنګ** :- (ش+ړَ+پې+دَ+ن+ګ) [ق - حمص] (و---- شړپېدنه)

**شړپېدنه** :- (ش+ړَ+پې+د+نَ) (حمص) (۱) په مائع څیز کښې لاس (یا بل څۀ څیز) وهلے کېدنه او د شړپ شړپ اواز ترې پیدا کېدنه- (۲) رپېدنه-

**شړپېدونکے** :- (ش+ړَ+پې+دُو+ن+کَے)(۱) هغه مائع چې په کښې څۀ څیز په زوره او زر زر وهلے کېدو په وجه د شړپ شړپ اواز کوي- (۲) هغه څیز (لاس وغیره) چې په څۀ مائع کښې په زوره زوره او زر زر خوځولے شي - (۳) رپېدونکے -

**شړت** :- (ش+ړ+ت) (اس صوت) (۱) په اوبو یا بل څۀ مائع څیز کښې د څۀ څیز په تېزۍ سره د داخلولو اواز - (۲) په اوبو یا بل څۀ مائع څیز کښې څۀ څیزله د حرکت ورکولو اواز -

ـــــ: (ش+ړَ+پ) (صف) شړم - سست - مړاوے -

**شړتول** :- (ش+ړ+تَ+ؤ+ل) (مص) (۱) په اوبو کښې څۀ څیز په زور زور سره وهل چې شړت شړت اواز ترې ووځي -(۲) معامله خرابول- (۳) بې قاعدګي کول- لکه ډېرې کرکۍ شړتول ډېر ناجائز کارونه کول- (ظفر) -(۴) ستول - شړمول-

**شړتولے** :- (ش+ړ+تَ+ؤ+لَے) (۱) اوبه یا داسې بل مائع څیز کښې چې څۀ څیز وهلے یا وخوځولے شي - (۲) سست کړے - شړم کړے -

**شړتوونکے** :- (ش+ړ+تَ+وُو+ن+کَے) (اس فا - ج - کي) (۱) په اوبو یا داسې بل کوم مائع څیز کښې لاس یا بل څۀ څیز وهونکے (خصوصاً چې اواز ترې پیدا شي) -
(۲) معامله خرابوونکے - (۳) سست کوونکے - شړموونکے -

**شړته** :- (ش+ړ+تَ) (اس - مو ، ج - تې) اوربشه - مجازاً ډېر لږ شان څیز-

**شړتېدل** :- (ش+ړ+تې+د+ل) (مص) (۱) د اوبو یا د بل کوم مائع څیز په زور سره په خوځېدو سره شړت شړت اواز پیدا کول - (۲) سستېدل - شړمېدل -

**شړتېدنګ** :- (ش+ړ+تې+دَ+ن+ګ) [ق - حمص] (و---- شړتېدنه)

**شړتېدنه** :- (ش+ړ+تې+د+نَ) (حمص) (۱) د اوبو یا د بل کوم مائع څیز د لاس یا د لرګي وغیره په ذریعه خوځولے کېدنه - (خصوصاً چې د شړت شړت اواز ترې پیدا شي) - (۲) د معاملې خرابېدنه - (۳) سستېدنه -

**شـــــړتېدونکې**:- (ش+ړ+تې+دُ+ن+کــې) [مــف - ج - شــړتېدونکي] (۱) خوځېدونکې (۲) معامله خرابېدونکې - (۳) سستېدونکې - خلاصېدونکې-

**شړټ** :- (شَ+ړ+ټ+) [رنګ - اس - مذ - ج: -ونه] قمیص -

**شړټنګ** :- (شَ+ړ+ټ+ن+ګ) (رنګ - جم) د قمیصونو ټوکے - د رخت ټوکے -

**شړټ** :- (شَ+ړ+ټَ) [اس - مؤ] (و---- شړهټه)

ـــــ:- (ش+ړ+ټَ) [اس - مؤ] (۱) اوربشه - (۲) مجازاً لږ - ډېر مقدار کښې -

**شړشپه** :- (شَ+ړ+شَ+پَ) (اس - مو) (۱) د طوفان یا د جنګ د کار اخري وخت (ق) (۲) ناګواره پېښه - تهلکه - د پکه - لړګ -

**شړشم** :- (شَ+ړ+شَ+م) (اس - جم) د مشهور بوټي نوم چې زیړ ګلونه کوي پاڼو او کچه ډنډرکو نه ئې ساګ پخېږي - د نري تخم نه ئې تېل ووځي- (اردو: کنبې ورته سرسو وائي) - (د شړشم زیړ ګلونه د پښتنو په شاعرۍ کښې ډېر یاد شوي دي) -

ـــــ **په تلي کښې نه زرغونېږي**:- (و----- شړسم په تلي کښې زرغونول) -

ـــــ **زرغونول ، په تلي کښې**:- هغه کار چې په میاشتو کښې کېږي په یو ساعت کښې کول غوښتل -

ـــــ **ډېر زیات تادۍ نه کار اخستل**:- کنایه: ناممکنه تادي کول - ډېره زیاته بې صبري کول -

د ـــــ **ګلونه**:- (ګ+لُو+نَ) د شړشم د بوټي ګلونه چې زیړ رنګ لري او درست پټے پرې زیړ او ښکلے ښکاري - د غنمو او اوربشو په فصل کښې هم راپیدا کېږي - پښتنې جونه ښځې په دغه هوسم کښې بهر پټو ته ووځي او د شړ شمو ساګ ټولوي - د پښتنو شاعرۍ کښې ډېر راوړلي شوي دي -

چې له کبره نظر نۀ کاندې نرګس ته
و هغـه تـه زۀ ګلونه د شړشم وړم (خوشحال)

**شړشمو** :- د "شړشم" اضافي یا مجروري شکل دے -

د ـــــ **تېل**:- هغه تېل چې د شړشمو د نرو نرو دانو نه ایستے شي -

د ـــــ **ساګ**:- (سا+ګ) هغه ساګ چې د شړشمو د بوټي د پاڼو واله د کچه ډندرکو نه پخولے شي -

**شړق** :- (ش+ړَ+ق) (اس - صوت) د چابک ، نرۍ لښتې یا د کروړې وغیره د ګزار اواز - شرک - شړک -

ـــــ:- (ش+ړ+ک) (اس - مذ ، ج - ونه) (۱) تندر - چړق - (۲) ناڅاپي مصیبت یا افت

ـــــ **پریوتـل**:- (۱) د اسمان نه تندر راخلاصېدل - (۲) مصیبت یا افت راتلل-(۳) په څۀ کښې د بل ډېل کولو په وخت یا طنزاً وئیلے شي چې څۀ شړق پرې پروته -

ـــــ **دربانديٍ پریوځه**!:- د ښېرې جمله ده - تندر دربانديٍ پریوځه یعنې تۀ مړ شې-

ـــــ **شړوق**:- (ش+ړو+ق) (اس - صوت) د شړق شړق اواز -

ـــــ **شړوق جوړول (په چاټه)**:- بې واره وهل -

ـــــ **د باران**:- (=با+را+ن) ډېر تېز او ګڼ باران -

**شړقا** :- (ش+ړ+ق+قا) (اس - صوت) (۱) د شړق شړق اواز - د چابک یا نرۍ لښتې د ګزاروټو اواز - شړکا - (۲) د تېز باران د وربېدو اواز-

**شړقار** :- (ش+ړ+ق+قا+ر)

**شړقهار** :- (ش+ړَ+قا+ها+ر) (اس صوت) د چابک یا د نری لښتې (بېنت وغېره) سره د وهلو اواز -

**شړقول** :- (ش+ړَ+قَ+و+ل) (مص مت) (۱) په چابک یا په نری لښته وهل - (۲) چړقول - په تېزی سره - خوځول - په زلزل راوستل -

**شړقه شړقه** :- (ش+ړَ+ق+قَ+ش+ړَ+ق+قَ) (اس صوت) د چابک - هنتېر یا نری لښتې سره د بې واره بې واره او زر زر وهلو اواز -

**شړقېدل** :- (ش+ړَ+قې+د+ل) (مص لا) (۱) په چابک ، کروړه ،یا نری لښته بې واره بې واره وهلے کېدل - (۲) جړ قېدل - په تېزی سره خوځېدل - په زلزله کېدل -

**شړک** :- (ش+ړَ+ک) (اس - صوت) د چابک ، د لښتې یا د کروړې د ګزار اواز - شرک - (و---- شړق)

**شړقول** :- (ش+ړَ+کَ+ؤ+ل) (مص مت) لښتې - یا د کروړې وغېره سره ډېر بې واره ګزارونه ورکول -

**شړ کولے** :- (ش+ړَ+کَ+ؤ+لے) [مف - مذ ، ج - لې] په لښته کروړه وغېره سره وهلے شوے -

**شړ کونه** :- (ش+ړَ+کَ+ؤ+نَ) [حمص] په لښته کروړه وغېره سره وهنه -

**شړ کوونکے** :- (ش+ړَ+کَ+و+ُ+ن+کے) [فاع - مذ - ج - کې] په لښته ، کروړه وغېره سره بې واره بې واره ګزار ورکوونکے -

**شړ کهار** :- (ش+ړَ+کَ+ها+ر) [اس صوت - مذ] (و---- شړقار)

**شړکے** :- (ش+ړَ+کَے) [اس - مذ] (و---- شړقار)

**شړ کېدل** :- (ش+ړَ+کې+دَ+ل) (مص)(۱) په تېزی او زور سره خوځېدل - (۲) په لښته - کروړه - وغېره بې واره ګزار نه خوځول -

**شړقېدلے** :-(ش+ړَ+کې+د+لے) [مف - مذ] په لښته یا کروړیه وغېره بې واره بې واره وهلے شوے -

**شړ کېدنه** :- (ش+ړَ+کې+د+نَ) [حمص] په لښته کروړه وغېره بې واره بې واره وهلے کېدنه -

**شړ کېدونکے** :- (ش+ړَ+کې+دُ+ن+کے) [مف - مذ - ج - کې] په لښته یا کروړه وغېره بې واره بې واره وهلے کېدونکے -

**شړل** :- (شَ+ړ+ل) (مص) (۱) د ځان نه لرې کول - (۲) څاروي ګډې بزې وغېره په مخ کښې بوتلل - (۳) رویه ساتل - تعلق ساتل -

چېرې نه وي چې ئې وشړے له دره

وئـریـزېږه د اهـونـو د شـیشره (خواجه محمد)

**شړلے** :- (شَ+ړ+لے) (اس مف ، ج - لې) هغه چې د چا نه لرې باسلے شوے وي رانده

**شړم** :- (ش+ر+م) (صف - مذ ، مو - ه) سست پست - ډیله ډاله - ناراسته شلم-

**---- توب**:- (تو+ب) (اس - مذ) سستي - سست والے - ناراستي -

**---- تیا**:- (ت+یا) (و---- شړم توب)

**---- کول**:- سست کول - سست پست کول - ناراسته کول -

**---- کېدل**:- سست پست کېدل - سستیدل - ناراسته کېدل -

**---- والے**:- (وا+لے) (و---- شړم توب)

**شړمول** :- (ش+ړَ+مَ+ؤ+ل) (مص مت) (و---- شړم کول)

**شړمولے** :- (ش+ړ+مَ+ؤ+لے) (اس - لف - ج - لې) سست کړے - سست پست کړے -

**شړمونګ** :-(ش+ړ+مَ+ؤ+ن+ګ) (ق - حمص) (و---- شړمونه)

**شړمونه** :- (ش+ړ+مَ+ؤ+نَ) (حمص) سستونه - سست پست کوونه -

**شړمونکے** :- (ش+ړ+مَ+و+ُ+ن+کے) (اس - فا - ج - کې) ستونکے - سست پست کوونکے -

**شړمېدل** :- (ش+ړَ+مې+دَ+ل) (مص) سست پست کېدل - ډیله ډاله کېدل - سستېدل - ناراسته کېدل -

**شړمېدلے** :-(ش+ړ+مې+د+لے) (اس - لف - ج - لې) سست کړے - سست پست کړے

**شړمېدنګ** :- (ش+ړ+مې+دَ+ن+ګ) (ق - حمص) (و---- شړمېدنه)

**شړمېدنه** :- (ش+ړ+مې+د+نَ) (حمص) سستېدنه - سست پست کېدنه -

**شړمېدونکے** :- (ش+ړَ+مې+دُو+ن+کے) سستېدونکے - سست پست کېدونکے -

**شړمېده** :- (ش+ړَ+مې+داه) (حمص) (و---- شړمېدنه)

**شړند** :- (ش+ړَ+ن+د) (صف - مذ ، مو - ه) زوړ - وروست څیز لکه زړه جامه -

**شړنګ** :- (ش+ړَ+ن+ګ) (و---- شړنګ)

**---- شړنګ**:- (و---- شړنګ شړنګ)

**شړنګا** :- (ش+ړَ+ن+ګا)

**شړنګار** :- (ش+ړ+ن+ګا+ر) (و---- شړنګا/ شرنګار)

**شړنګانې** :-(ش+ړَ+ن+ګـا+نې) (اس - مـذ ، ج - نـې) چنچنـې - جړنګـانې د ماشومانو د غړولو څیز چې دستکې لرې -

**شړنګول** :- (ش+ړَ+ن+ګَ+ؤ+ل) (مص) (و---- شرنګول)

**شړنګوونکے** :- (ش+ړَ+ن+ګَ+وُو+ن+کے) (اس فاع - مذ) (و----شړنګوونکے)

**شړنګونه** :- (ش+ړَ+ن+ګَ+ؤ+نَ) (حمص) (و---- شرنګونه)

**شړنګهار** :-(ش+ړَ+ن+ګَ+ها+ر) (اس صوت - مذ) د کالو د ګونګروګانو اواز - شړنګا - د شړنګ - شړونګ اواز -

د پـائلو دخـړې ئې شـرنګهار شو

زۀ له خوبه راپرتاب شوم ډېر په ویره (خوشحال)

**شړنګېدل** :-(ش+رَ+ن+ګې+د+ل) (مص) (و---- شرنګېدل)

**شړنګېدنه** :- (ش+ړَ+ن+ګې+د+نَ) (حمص) (و---- شړنګېدنه)

**شړنګېدونکے** :- (ش+ړَ+ن+ګې+دُو+ن+کې) (مف - مذ) (و---- شرنګېدونکے)

**شړنه** :- (شَ+ړ+نَ) (حمص) (۱) د ځان له لرې کوونه - لرې باسنه - ورکوونه - (۲) د څاروو یا ګډو بزو په مخه بوتلنه -

**شړوبے** :- (ش+رو+بے) (ق - اس - مـذ ، ج - بې) د پیویو لوښے - شېردان - سماوار وغېره

**شړوپ** :- (ش+رُو+پ) (اس صوت) (و---- شړپے)

**شړوته** :- (ش+رو+ت) (اق) (اس - مو - ج - تې) د انزال د وخت خونداو لذت -

**شړول** :- (شَ+ړَ+ؤ+ل) (مص) (۱) شاړول - بنجر کول - غېره اباد کول - (۲) بې حاصله او بې فائده کول -

**شړول** :- (شَ+ړَ+ؤ+ل) (مص) تویول - بهبول - ضائع کول -

**شړوم** :- (ش+ړو+م) (اس جم) د کوچُو د ویلې کولو نه پس چې څۀ لاندې پاتې شي - لاندې پاتې څیز - فضله شلوم -

**شړومے** :- (ش+ړو+م+بے) (اس جم) شوملې - شلومے شنوبے-

**شړون** :- (شَ+ړو+ن) (حمص) شړلے کېدنه - د ځان نۀ لرې باسنه ورکوونه -

**شړوند** :- (ش+ړو/ړُ+ن+د) (صف) زوړند - سست - دا لفظ عموماً غوړونو سره راځي لکه شړوند غوړونه نیول - شړوند غوړونه لاړ یعنې شرمنده او خجل یا ناکامیابه -

**---- غوړونه**:- (غ+وَ+ګُو+نَ) (پ تر - صف) زوړند کړے یا ځوړند شوے غوړونه کنایه ده - شرمندګي خجالت سره -

**---- غوړونه تلل**:- شرمنده او کوز سترګي تلل -

**---- غوړونه نیول**:- شرمنده کېدل - خجل کېدل -

**شړونکے** :- (شَ+ړو+ن+کے) (اس - فـا - ج - کې) شاړوونکے - شاړکوونکے - بنجر کوونکے

**شړونے** :- (شَ+رُو+نے) (اس مف - ج - نې) سړے شوے - لړې کړې شوے - هغه کس چې د کلي ښار ملک نه ویستلے شوے وي - ملک/ښار بدر کړے -

**شړه** :- (شَ+ړَ) (ص - مو ، ج - شړے) د شاړه مخفف دے - شاره - غېر - اباده - بنجره -

**ـــــ موړه**:- (مو+ړَ) (اس - مو) د دیوال سر - سرماتے -

**شړهته** :- (ش+ړ+هَ+تَ) (ا - ق - اس - مو - ج - تې) نوے رارسېدلے فصل - دلمل شین غته - شړته -

**شړهېدل** :-(شَ+ړ+هې+د+ل) (مص) سخا کېدل -

**شړۍ** :- (شَ+ړَ+ی) (اس - مو) کمبله - د وړۍ غټ اودلے شوے څادر -

**ـــــ په شال بدل ول**:-

**ـــــ په شال نه بدلېږي**:- شړۍ د معمولي قیمت څیز دے او شال ډېر قیمتي څیز دے - ځکه ددې دواړو یو بل سره بدلون نۀ کېږي - مجازاً ادنیٰ څیز په اعلیٰ څیز نۀ بدلېږي -

**ـــــ ور**:- (ۀ+ر) (صف - مذ ، ج - مو ه) د شړۍ خاوند - د شړۍ اغوستونکے - مجازاً ساده جامو واله یا مطلق ساده سړے -

شړیه ور پښتون به سل پـه دیکه یوسي
کشمیري چې برګ شالونه ئې په دوش دي (خوشحال)

**ـــــ بوټے**:-(بُو+ټے) (ق) (اس - مذ ، ج - ټي) د ګیاه یو قسم دے چې د سپیرکو د بوټي په شان وي او د جنجښو بوټي له خاندانه دے -

**شړېدل** :- (شَ+ړې+د+ل) (مص) شاړ کېدل - بنجرېدل - غېر اباد کېدل - (زمکه یا کلے کور) -

**شړېدل** :- (ددغه) (مص) توئیدل - شل کېدل -

**شړېدل** :- (ددغه) (مص) ورستېدل - زَړېدل -

**شړېدلے** :- (شَ+ړې+د+لے) (اس مف ، ج - لي) وروست شوے - زوړ -

**شړېدۀ** :- (ش+ړې+د) (مص) شړېدنه - شاړکېدنه - بنجر کېدنه -

**شړېدۀ** :- (ددغه) (مص) توئیده - تل کېده -

**شړېدۀ** :- (ددغه) (حمص) ورستېده - زړېدنه - وروست کېدنه -

**شست** :- (ش+س+ت) (ف - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) شیش - نخښه -

د خوشحال پـه ځان د ډېرو غشي لګ دي
خو هـم دۀ زده چې دے مري د چاله شسته (خوشحال)

(۲) د کبانو د نیولو کونډه -

په ادراک له قهره نۀ ګوري ساحل ته
هغه کـب چې ویره وویني له شسته (خوشحال)

(۳) ګوتمۍ چې درزیان یا لیندي مار ئې په ګوته کښې اچوي -

**ـــــ اخیستل**:- شیش برابرول - نخښې ته ټوپک یا لینده وغېره برابرول -

**شست** :- (شُ+س+ت) (ف - حمص) وینځنه - ودې وینځۀ -

**ـــــ وشو**:- (تو)+شُو) (ف تر) (اس - مو) وینځل - پاکه ول -

سـیا رویـه صـد هـزار دربـارله درشي
سپین مخ ځي ستا د رحمت شست وشو یه (حافظ)

**شسته** :- (شُ+س+تَ) (ف - ص) وینځلے شوے - صفا - پاک - سوتره -

**ـــــ ژبه**:- (جبه) یا کلام - (ساده او روانه ژبه) (لیک یا خبرې اترې) -

**شستي** :- (شَ+س+تَے) [اس - مذ - ج:شستي] د یو ګل نوم - ګُل داؤدي -

**شش** :- (شَ+س) (اس - مذ ، ج - ونه) د زنانه ؤ د یوۀ کالي/ زېور نوم دے چې په غاړه کښې اچولے شي او په سینه ځوړندولے شي - (ق) -

**شش** :- (شَ+س) (ف عدد) شپږ -

**ـــــ ارکان**:-(اَ+ر+کا+ن) (ف - اس) هغه شپږ څیزونه چې بنې ادم د هغونه بغېر ژوندے نۀ شي پاتې کېدے - یعني هوا - خوراک - د بدن حرکت او سکون - د نفس حرکت او سکون - خوب او بېداري - استفراغ (د بدن د فضلو نه پاکېدل)

**ـــــ پهلو**:- (پَ+ه+لُو) شپږ اړخیز - شپږ اړخونو واله -

**ـــــ جهته**:- (ج+هَ+تَ) شپږ طرفونه - شپږ لورې - یعني وړاندې - وروستو ، ښې ته ، ګس (کیڼ) ته اوښکته او پورته -

**ـــــ دانګ**:- (دانګ) (ف - اس - مذ) (۱) پوره او کامل څیز ځکه چې د شپږ دانګونه یو پوره دینار جوړېږي - (دا دواړه پخوانۍ سکې دي) روپۍ کښې شپاړس انې - (۲) شپږ طرفونه - شپږ لوریه - یعني ښي تـه ګس تـه ، وړاندې ، وروستو پاس ښکته -

**ـــــ در**:-(-دَ+ر) شپږ دروازې - کنایتـاً حېـران دریـان - (۱) حېـرت زده -(۲) د جوارۍ د دانې یا بساط شپږ خالونو واله خانه -

ارمـانونـه به کوي زار زار به ژاړي
چې حاصله ګوتېه کا په شدر څوک (رحمان بابا)

**ـــــ درپاتې کېدل**:- حېران دریان پاتې کېدل - حېرت زده پاتې کېدل - په یو دوه کښې حېران پاتې کېدل -

**ـــــ کروهي**:- (ک+رو+هي) شپږ کروهي -

**ـــــ وپنج**:-(شو+پَ+ن+ج) (محاوره) حېران دریان - پرېشاني - تردد - چې سړے فېصله نۀ شي کولے -

**ـــــ و پنج کښې اچول**:- حېران کول - په حېرت کښې اچول په دوه کښې حېرانول - تردد کښې اچول چې سړے څۀ فېصله نۀ شي کولے -

**شش** :- (شُ+ش) (ف) اس - مذ) پرپوس -

**شـش** :- (شُ+ش) (ه - اس صوت) د سپي د پـارولو اواز - هغـه وخـت د اواز د خولې نه ایستے شي چې څوک سپے چا پسې کول غواړي -

**ششت** :- (شَ+س+ت) (اس مذ ، ج - ونه) هغه وړه شان ائینه چې په ګوته کښې لګېدلې وي -

تندر د رقیب په کور پرېووځي قهقه خـاونده
سـپـینه ائـینه د ششت خپل یار تـه څـلوه (خوشحال)

**ششتۍ** :- (ش+ش+تَ+ی) (اس - مو) ګتۍ - ګُته - شستې - انګشترې -

**ششتے** :- (ش/شَ+ش+تَے) (اس - مذ - ج - تي) شیشتي ګل - ګل داؤدي -

**ششک** :- (ش+ش+ک) (ق - اس - مذ ، ج - ونه) د کوټې یا د کور په مخکښې د یوې ستنې دالاڼ (رواق) برانډه -

**ششکارنه** :- (شُ+ش+کا+ر+نَ) (حمص) سپے چا پسې کولو دپاره شُش شش اواز د خولې نه ویستنه -

**ششکه** :- (ش+ش+کَ) (رق) (اس - مو ، ج - کې) د ماشومانو یو بیماري - چې په عربۍ کښې ورته حبینام وائي -

**ششګے** :- (ش+ش+ګے) [اس - مذ - ج - ششګي] شیشکے - سږګے - شږګے

**ششم** :- (ش+شُ+م) (ف - عدد) شپږم - یا شپږمه -

**ششنا** :- (ش+ش+نا) (اس - مو ، ج ، ګانې) د اس هنېدنه - ششړان -

یـو اواز د ښـو اسـونو د ششنا دے
بل اواز د ګنده خرونو دے چې نارې (خوشحال)

**ششنل** :- (ش+ش+ن+ل) (مص) د اس هنېدل -

**ششنے** :- (ش+ش+نې) (اس - مذ ، ج - نې) د اس هنا - د مستۍ په وخت د اس ششنا -

**ششنبدل** :-(ش+ش+نې+د+ل) (مص) د اس هنېدل -

**ششنبدلے** :-(ش+ش+نې+د+لے) [مف - مذ - ج: ششنبدلي] هنېدلے -

**ششنبدنه** :-(ش+ش+نې+د+نَ) [حمص] (د اس) هنېدنه -

**ششنبدونکے** :- (ش+ش+نې+دُو+ن+کے) (اس فا - ج - کي) هنېدونکے - (اس)-

**ششنبدۀ** :- (ش+ش+نې+د) (حمص) (د اس) هنېدنه -

**شصت** :- (شَ+ص+ت) (ف-عدد) شپېته- درې شلې-

**شط** :- (شَ+ط) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) (۱) د سیند غاړه- کناره- څنډه-

ډېر په دریاب ګډ شي واړه مټې کا د وتلو
څوک په کښې لاهو شي ځنې ورسي تر شط (خوشحال)

په سپین مخ کښې ئې نکتې دي عجائبې
تورې زلفې ئې جدول په دواړه شط (خواجه محمد)

**ـــــ کېدل**:- د یو بل نه جدا کېدل-

شط د رود نیل که د موسیٰ په حکم وشو
شق د قمر وشه په فرمان د محمد صلی الله علیه وسلم (خوشحال)

**شطاح** :- (شَ+طُ+طا+ح) (ع-صف) مذ ، مو-ه) (۱) بې حیا- بې شرمه- (۲) بد چلنه-

**شطاحي** :- (شَ+طُ+طا+حي) (ع-اس-مو) بې حیائي- بې شرمي-

**شطاریه** :- (شَ+ط+طا+ري+يَ) (ع-اس مع) د صوفیانو یوه مشهوره فرقه-

**شطح** :- (شَ+طَ+ح) (ع-مذ) د شریعت خلاف کلمه هغه کلمه چې ځینې مجذوبان ئې د خولې نه وباسي خو هغه د شریعت خلاف وي- که د منصور دا وینا چې انا الحق- (زۀ حق یا خدا ے یم)-

**شطرنج** :- (شَ+ط+ر+ن+ج) (ع-اس مذ)(د فاسري د سترجن عربي شکل دے -دا هم اصلاً د سنسکرت چترنګ یا سترنګ وۀ- (۱) دې ته سترنګ ځکه وائي چې په دې کښې شپږ قسمه مهرې دي- یعني باچا وزیر (فرزین) اس- خېل- رخ ار پیادګان مشهوره دماغي لوبه ده چې دځلورو شپېتو خانو (کورکو) په بساط باندې کوله شي- ټولې دوه دېرش مهرې وي- شپاړس یو طرف ته او شپاړس بل طرف ته- (۲) مجلس- (شاز)-

د شطرنج لائق به هله شي حافظه
که د ګلو هار سالم یوسې خوباله (حافظ)

**ـــــ باز**:-(با+ز) د شطرنج لوبه کول-

**شطرنجي**:- (شَ+ط+رَ+ن+جي) (صف-یو) د شطرنج سره تعلق لرونکے- د شطرنج (د بساط) مطابق- لکه په شطرنجي ترتیب-

**شعار** :- (شِ+عا+ر) (ع-مذ ، ج-ونه) طور طریقه- دود- دستور- لاره-

**شعار** :- (ددغه) د اندرکې د لاتدې چې کومې جامې اغوستے شي- یعني هغه جامې په بدن سره لګېدلې وي-

**شعار** :- (شِ+عا+ر) (ع-لاحقه) لاحقه ده- ځینو الفاظو نه وروستو راځي-

**کفایت ـــــ** :- (ک+فا+يَ+ت) په خرچ کښې کفایت کوونکے- کم خرچ کوونکے-

**شعاري** :- (شِ+عا+ري) (ع-لاحقه) لاحقه ده- شعار سره یا نسبتي لګولے شوې ده

**کفایت ـــــ** :- (ک+فا+يَ+ت) په خرڅ کښې کفایت کوونه- کم خرڅي-

**کفایت ـــــ کول**:- په خرڅ کښې کفایت کول- په خرڅ کښې بچت کول- کم خرڅي کول-

**شعاع** :- (شُ+عا+ع) (ع-اس مؤ- ج- ګانې)- ځینې خلق جمع شعاعونه هم استعمالوي پلوشه- د نمر (نور) څرېکه-

**شعاعي** :- (شُ+عا+عي) (ع-صف) پلوشې سره تعلق لرونکې- د نمر (نور) د څرېکې متعلق-

**شعائر** :- (شَ+عا+ئې+ر) (ع-ج) د شعائرت یا د شعیرت جمع ده- علامې- علامتونه- نخښې-

**ـــــ حج**:- (ح+ج) د حج فرائض او طریقې-

**شعب** :- (ش+ع+ب) (ع-اس-مذ) په غره کښې لار- دره-

**ـــــ ابو طالب**:- (اس مع) (۱) د مکې سره نزدې په غرۀ کښې د یو ځاے نوم- چېرته چې رسول الله ص معلم او د هغوي د خاندان (بنو هاشم) خلقو تر دریو کالو پورې د مکې د خلقو (قریشو) د بائکاټ په وجه ډېرې سختې ورځې تېرې کړې وې- (۲) لویه قبیله- (ج- شعاب)-

**شعبات** :- (شُ+ع+با+ت) (اس-ج) د شعبه جمع ده- (وـــــ شعبه)

**شعبان** :- (شَ+ع+با+ن) (اس مع) د هجري کیلنډر اتمه میاشت- د شوقدر میاشت- (دې میاشتې ته شعبان ځکه وائي چې دې میاشت کښې د عربو خلق سېل یا سفر دپاره بهر ته وتل یعني مشعب کېدل)-

**شعبده** :- (شُ+ع+بَ+دَ) (ع-اس-مو ، ج-د ے) (۱) جادو یا په بل څۀ چل هنر ښودلے کېدونکې لوبه یا کرتب- (۲) فریب- دوکه- نظر بندي- چلول-

عقل ډېره شعبده لري په میو
ساقي تار په تار ئې هره شعبده کړه (خوشحال)

**ـــــ باز**:-(با+ز) (۱) شعبدے ښوونکے- د چلول او د دوکې کرتبونه ښیونکے- (۲) د دوکې په کرتبونو خلق دوکه کوونکے- دوکه باز- (۳) په شاعرۍ کښې اسمان ته وئیلے شي چې انسان ته رنګ رنګ لوبې او تماشې ښائي-

**ـــــ بازي**:- (با+زي) د شعبده باز کار- د دوکې کرتبونه یا تماشې ښودل- چل ول- دوکه فریب-

**شعبه** :- (شُ+ع+بَ) (ع-اس-مو ، ج-شعبې/شعبات) (۱) د قبیلو وېش (۲) ټوټه- ټکړه- (۳) دکومې لوئې ادارې یوه څانګه-

**شعر** :- (شَ+ع+ر) (ع-اس-مذ) وېښتۀ- مُو-

**شعر** :- (شِ+ع+ر) (ع-اس-مذ ، ج-ونه ،عربي جمع اشعار) موزون کلام- دوه مصرعې چې یو وزن لري- یو بحر کښې وي او یو خاص خیال څرګندوي او شاعر په اراده سره وئیلې وي-

**ـــــ جنګېدل**:- د دوۀ شاعرانو د شعر مضمون اتفاقي طور سره یو شان کېدل-

**ـــــ جوړول**:- خپل خیالات په شعر کښې بیانول- شاعري کول-

**ـــــ خواني**:- (خ+وا+ني) (عف تر-اس-مو) یا (خا+ني) شعر لوستل یا وئیل- شعر (یا شعرونه) په اوچت اواز وئیل-

**ـــــ کول**:- شعر وئیل- شعر جوړول-

چې چادے شعر کړے بې میزانه بې عروضه
دا هرڅ شاعري نۀ ده یو څو سپې دي ټمبدلي (خوشحال)

**ـــــ ګو**:- (ګو) (ف تر) شعر ویونکے- شاعر-

**ـــــ ګوئي**:- (ګو+ئي) (عف تر-اس-مو) شعر وئیل- شاعري کول-

**ـــــ وئیل**:- (۱) (وـــــ شعر جوړول) (۱) شعر نورو کسانو ته اورول-

**د ـــــ بندش**:- (بَ+ن+د+ش) د شعر ، د لفظونو تړون- د لفظونو ترتیب ، ترکیب یا انداز

**شعراء** :- (شُ+عَ+را) (ع-ج) د شاعر جمع- ډېر شاعران-

شعراء وړومبني دهل بلند اواز وو
د حافظ اواز دے کم تر جلاجله (حافظ)

**شعري** :- (ش+ع+ري) (ف-صف) شعر سره تعلق- د شعر سره تعلق لرونکے

**ـــــ مجموعه**:- (مَ+ج+مُو+عَ) د شعرونو مجموعه- دیوان یا کلیات-

**شعري** :- (شَ+ع+ري) صفت شعریه- (شَ+ع+ري+عَ) (ع-اس-مو) هغه کار یا څیز چې د ویښتو سره تعلق لري-

**ـــــ رګونه**:- (رَ+ګُو+نَ) (عپ تر-ج) په بدن کښې هغه رګونه چې لکه د وېښتو نرۍ وي-

**شَعشَه** :- (شَ+ع+شَ) (ع-اس-مو ، ج-شې) (۱) پلوشه- د نمر (نور) څرېکه- رڼا- ځلق- زلق- زلقبده- (۲) مجازاً دروغ یا د ځان جوړه کړې خبر- شوشه- (۳) شراب- اخري دواړه معنې په پښتو کښې سازدي) او په

دویمه معنیٰ کښې د شین سره وئیلے کېږي -

ـــــ **پر پښنودل**:- (و---- شوشه پرپښنودل)

**شعف** :- (شَ+عَ+ف) (ع-اس) په دوستئ کښې لیونے کونه - عاشق کونه مئینونه -

**شـعله** :- (شُ+ع+ل) (ع-اس-مـو ، ج-شـعلې) د اور لنبـه-د اور لويـه او تېـزه (رېزه) - لنبه - لمبه - شغله -

وسېځه تۀ ځان زمـا پـه شعله باندې
کړه پتنگ ته په رموز کښې کلام شمع

ـــــ **افشان**:- (اَ+ف+شا+ن)

ـــــ **فشان**:- (ف+شا+ن) (و---- شعله بار)

ـــــ **افشاني**:- (اَ+ف+شا+ني)

ـــــ **فشاني**:- (ف+شا+ني) (و---- شعله باري)

ـــــ **بار**:- (با+ر) (عف تر-صف ، مذ ،مو-ه) (۱) شعلې وروونکے او وروونکے - (۲) ډېر تېز او د جوش نه ډک - تقرير وغېره)

ـــــ **باري**:- (باري) (عف تر-اس-مو) شعلې وروونه - شعلې غورځونه -

ـــــ **پورته کېدل**:- (۱) لنبه (لمبه) پورته کېدل - (۲) مجازاً ډېر په قهرېدل - سختېدل - لکه د زړۀ نه ئې يوه لنبه راپورته شوه -

ـــــ **جواله**:- (جَ+و+وا+لَ) (عف تر-مو) (۱) چورلېدونکې لنبه - د يو لرگي په دواړه سرونو کښې شعلونه بل کړے شي او چې بيا دا لرگے چورلولے شي نو دائره ترې جوړه شي - (۲) په شاعرئ کښې د معشوقې د مخ يا د ښکلې معشوقې دپاره استعمالېږي-

ـــــ **دار**:- (دا+ر) (ف تر-صف مذ ، مو-ه) شعله لرونکے - مجازاً روښانه - ځلېدونکے -

د بې شناختئ تربگنئ ملک رابـاندې تورانده هرکه
مخ د نياز منو سپين مهتاب شعله دار پاتې نۀ شو (حافظ)

ـــــ **رُخ**:- (رُ+خ) ----------------

ـــــ **رخسار**:- (رُ+خ+سا+ر) ----------------

ـــــ **رو**:- (رُو) ----------------

ـــــ **عذار**:- (عُ/عَ+ذا+ر) دا ټول الفاظ د معشوقې د مخ او د اننگو د صفت په طور په شعرونو کښې استعمالېږي - يعنې د اور د لنبې په شان ښکلے او روښانه

ـــــ **زبان**:- (زا+دَ) (عف تر-اس ، مذ) د شعلې يا د اور نه زېږېدلے مجازاً - شېطان - ابليس -

ـــــ **زبان**:- (زَ+با+ن) (عپ تر-ص مذ ، مو-ه) د لنبې په شان ژبه لرونکے يا چې د ژبې نه ئې لنبې راووځي د هغه کس په حقله وئيلے شي چې په وېنا يا تقرير کښې ئې ډېر اثر وي چې د اورېدونکو په جذباتو اور لگوي- لنبه ژبے -

ـــــ **زباني**:- (زَ+با+ني) تېز ژبتوب - لنبه -

ـــــ **طور**:-(طُو+ر) (طُو+ر) (عف تر-مذ) د طور د غر شعله يا لنبه - هغه لنبه يا رڼا چې د حضر موسیٰ عليه السلام ته په طور غر ښکاره شوې وه

ـــــ **فام**:-(فا+م) (عف تر-صف ، مذ ، مو-ه) د شعلې يا د لنبې په شان رنگ لرونکے - ډېر ښکلے - د معشوقې په صفت کښې وئيلے شي -

**شعور** :- (شُ+عُو+ر) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) هوښيارتيا - پوهه - عقل - خبرېدنه - پېژندنه

**په بشپړ ـــــ**:- (پَ+بَ+ش+پ+ړ) پوره شعور سره - په پوره پوهه -

**د ـــــ خاوند**:- (خا+و+ن+د) (عپ تر-اس مذ) هغه کس چې شعور، پوهه او احساس لري-

**د ـــــ عمر**:- (عُ/عُو+م+ر) (عپ تر-اس مذ) هغه عمر چې يو هلک په ښۀ او بد پوهه شي - د هوښيارتيا عمر - د ښۀ او بدتميز عمر -

ـــــ **سياسي**:- (س+يا+سي) (ع-ب تر-مذ) سياسي پوهه يا احساس -

**شعوراً** :- (شُو+عُو+رَ+ن) (ع-تف) سره د شعوره - سره د پوهې او احساس -

**شعوري** :- (شُ+عُو+ري) (ع-صف-مو) شعور سره تعلق لرونکے - عقل پوهې او احساس سره -

ـــــ **طور سره**:- په ښه پوهه او احساس سره -

**شعيب** :- (شُ+عے+ب) (اس مع) مشهور پېغمبر حضرت شعېب عليه السلام او د بي بي صفو را پلار چې حضرت موسیٰ عليه السلام ته وادۀ شوې وي-

بزرگ زيارت ئې د شعېب پېغمبر وکړو
بـرکت بـه مـزور هـم پـه زائـر شي (حافظ)

**شعير** :- (شَ+عي+ر) (ع-اس-مذ) اربشې -

**تـر ـــــ ئې ترښـو رواخوشحاله کېـدل**:- مجـازاً د چـا د خبرنـه - د هغـه پـه شـر خوشحالېدل - د خبر نه ئې شرخوښول -

ـــــ **نان**:- (نَ+ني) (عف تر-اس-مذ) د اوربشو ډوډۍ - اوربشينه -

**شغ** :- (ش+غ) (اس صوت-مذ) (۱) تېزئ سره د چا په خوا کښې د تېرېدلو اواز (۲) د مرغـانو د وزرو اواز - (۳) د غشـي اواز - (۴) د نـوې جـامو د شـلولو اواز

ـــــ **تلل**:- (اـق) تېزئ سره تلل - په يو شغ تېرېدل -

**يو ـــــ سره**:- ډېرې تېزئ سره - لکه د يو تېز مارغۀ -

ـــــ **شغ ئې شو چې**:- ډېرې تېزئ سره - لکه يوه تېزه مرغئ د شغ اواز سره تېره شي-

**شغا** :- (ش+غا) (اس صوت) د شغ په شان اواز - (و---- شغ ۳، ۲، ۱)

**شغار** :- (ش+غـا+ر) (اس صـوت) (۱) د ډېـرو مرغـو مارغـانو دالوتـواواز-(۲) د ډېرو غشو په خوا کښې د تېرېدواواز -

**شغاشغ** :- (ش+غا+شَ+غ) (اس صوت) د شغ شغ متـواتر اواز - پرلـه پسـې د شغ شغ اواز -

**شغال** :- (شَ+غا+ل) (اس-مذ-ج-ان) (۱) گيدړ - (مشهور ځناور) **چغال** -

باز د خپله ښکاره نه ووځي چې زوړ شي
ترزارۀ مـزري ځـاربـږه ځـوان شـغال (خوشحال)

(۲) مجازاً يرندوکي او بې زړۀ سړي ته هم وايۀ شي -

ـــــ **شوم**:-(شُو+م) يرندوکے او بې زړۀ سړے - شوم او نا خوښه سړے - رذيل - کم اصل-

**شغالي** (۱):- (شَ+غا+لي) (اس -مو) د گيدړ خوي بوي - بې زړۀ توب - بې غېرتي-

**شـغالي** (۲):- (شَ+غـا+لي) (ف-اس جم) د انگـورو يـو قسـم دے - وائـي چـې گيدړان ئې ډېره په خوښه خوري - ځکه ورته شغالي وائي -

**شغالے** :- (ش+غا+لے) (اـق-صف-مذ ، ج-لي) ديسي مال - (د ولايتي په مقابله کښې) په خپل ملک کښې جوړ شوے -

**شـغالے** :- (شَ+غـا+لے) [اس-مـذ] (۱) د اوښ يـو قسـم - (۲) نقلـي ټوپـک او کالتوس

**شـغالے** :- (ش+غـا+لے) (اس-مـذ-ج-لـي) د گيـدړ د ذاتـه - گيـدړ سره نسبت لرونکے مجازاً - کم اصل - کمينه - رذيل سړے -

**شغب** :- (شَ+غَ+ب) (ع-اس-مذ) شور - زوږ - عموماً دا لفظ شور سره يو ځـاے راځي - يعني شور شغب - شور شغرب هم راځي -

**په ـــــ کېدل**:- په فرياد کېدل - په ژړا کېدل - په نارو سورو کېدل -

ناز پرور زويه مې دواړه
په فرياد او په شغب شول (خوشحال)

**شغرب**: - (شَ+غ+ر+ب) (اس - مذ) شور، زوږ - دا لفظ عموماً شعور سره يو ځاے راځي - يعني شور شغرب - يعني شور زوږ - (د عربي د شغب بدل شكل دے) -

**شغوب**: - (شَ+غ+رِ+ب) (اس - مذ ، ج - ونه) نمر خاتهٔ - مشرق محاوره ده له شغربه تر مغربه يعني له مشرقه تر مغربه -

**شغرغ**: - (شَ+غ+رَ+غ) (صف - مذ ، مو - ه) شرير - شېطان - فسادي - شوري - شرّي

**شغز**: - (شَ+غ+ز) (ق - اس مذ ، ج - ونه) يوه غرئيزه ونه چې ډېره لويه وي او سپين گلونه کوي -

**شغف**: - (شَ+غ+ف) (ع - اس - مذ) (په دوستۍ کښې زړهٔ د غلاف دننه حصې ته رسېدل) کنايه ډېره مينه - رغبت - خوښوونه -

**شغكه**: - (ش+غَ+کَ) (اس - مو - ج - کېږ) لشه - د غنمو يا د اوربشو په وږو کښې نرے اوږد تېرهٔ ډکے -

**شغكې**: - (ش+غَ+کَې) (اق ، اس - مذ ، ج - کي) اغزے - ازغے -

**شغل**: - (شُ+غ+ل) (ع - اس مذ ، ج - ونه) (۱) شغولتيا - په څهٔ کار کښې لگيا اوسېدنه - (۲) کار - کسب - پېشه -

**ـــ كول**:-(۱) په څهٔ کار کښې مشغولېدل - په څهٔ کار کښې لگيا يا بوخت اوسېدل - په يو کار کښې په خوښه لگيا اوسېدل - په څهٔ کار کښې وخت تېرول - (۲) پېشه - کار - کسب کول -

يار چې د يار شغل که په کار ئې اغيار بلوسي
څوک چې گل چيني کا په لمن به ئې خار بلوسي (حافظ)

**شغلبه**: - (شَ+غ+لَ+بَ) (اس - مو ، ج - بې) غوغا و فرياد - شور - کوکارې -

**شغل زی**: -(شَ+غَ+ل+زَ+يُ) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د ملک يار يو څانگه ده - تور ترين دي -

**شغلل**: - (ش+غ+ل+ل) (مص) د هلکانو يوه لوبه - کول (ق) -

**شغله**: - (شُ+غ+لَ) (اس - مو - ج - يې) د شعله عوامي شکل دے) شعله - لنبه - لمبه

**شغله**: - (شُ+غ+ل) (اس - مو ، ج - لې) مشغله - شغل - خپل فکر په دې شغله کښې څخه خرڅ کړم - (دستار نامه)

**شغلي**: - (شُ+غ+ل) (اس - ج) (۱) د شغله جمع ده - (۲) د شغله اضافي يا مجروري حالت -

**ـــ دايكس**: -(دَ+اے+ک+س) (رق انگ - ب تر - اس ج) د ايکس ربز جمع ده - هغه خاص قسم شعاعونه چې د مختلفو کارونو د پاره پکارولے شي - نامعلومه شعاعونه -

**شغنان**: - (شُ+غ+نا+ن) (اس مع) د افغانستان قطب طرف ته د يو ملک نوم -

**شغناني**: - (شُ+غ+نا+ني) (اس - مو - مو) (۱) د شغنان د علاقې اوسېدونکے (۲) د شغنان د علاقې ژبه -

**شغني**: - (شُ+غ+ني) (اس - مع - مو) د يوې پخوانۍ ژبې نوم - چې د شغنان په علاقه کښې وئيلے کېږي - شغناني -

**شغول**: - (شَ+غَ+وُ+ل) (مص) (۱) تېزۍ او زور سره لرې غورځول - (چې د تېزۍ له کبله د "شغ" اواز ترې پېدا شي) (۲) په زور سره راخلاصول - لکه سُوک ورشغول - (په تېزۍ سره سوک راخلاصول) عموماً رادرمي او درسره راځي)

**شغولان**: - (ش+غُو+لا+ن) (ق - اس) د لوخې په شان يو بوټے دے - چې يوه لوېشت قدرې اوچت وي -

**شغونگ**: - (شَ+غَ+وُ+ن+گ) (و ---- شغوونه)

**شغوونه**: - (شَ+غَ+وُ+ونَ) (حمص) په تېزۍ او زور سره غورځونه -

**شغوونكے**: - (شَ+غَ+وؤ+ن+کے) (اس - فا - ج - کي) په تيزۍ سره (ور) غورځوونکے -

**شغهار**: - (شَ+غَ+ها+ر) (اس صوت) (۱) د شغ شغ اواز - شعار - (۲) د ډېرو مرغو مارغانو په خوا کښې د الوتو اواز - (۳) د گڼو غشو اواز -

**شف**: - (شَ+ف) (ف - اس - مذ) شپه - شب -

**شفا**: - (ش+فا) (ع - اس - مو - ج - گاني) (۱) صحت - تندرستي - روغېدنه - جوړېدنه - (۲) د حکيم بوعلي سينا د مشهور کتاب نوم - (۳) د ښځو په نوم کښې هم استعمالېږي -

**ـــ بخش**:-(بَ+خ+ش) (ف تر - صف - مذ ، مو - ه) صحت بخښونکے - ناجوړتيا لرې کوونکے -

**ـــ موندل**:- صحت موندل - رغېدل - جوړېدل -

**ـــ ياب**:-(يا+ب) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) د بيمارۍ نه جوړ شوے هغه څېز چې شفا ئې موندلې وي - روغ شوے -

**ـــ يابي**:-(يا+بي) (ف تر - اس - مو) شفا موندنه - رغېدنه - جوړېدنه - د ناجوړتيا نه ښهٔ کېدنه -

**شفا خانه**: - (ش+فا+خا+نَ) (اس - مو ، ج - نې)درملتون - هسپتال -

**ـــ سفري**: - (سَ+فَ+ري) (فپ تر - اس - مو ، ج - نې) هغه شفاخانه چې د يو ځاے نه بل ځاے ته په حرکت کښې وي - هغه دواخانه او ډاکټران وغېره چې په خاص گاډو کښې کلي په کلي گرځي -

**ـــ عسكري**: - (عَ+س+کَ+ري) (فپ تر - مو - ج - نې) فوجي شفاخانه - د فوځيانو هسپتال -

**شفاعت**: - (شَ+فا+عَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) شفارش - (۲) د گناهونو د بخښنې سفارش - خصوصاً هغه سفارش چې رسول الله ص به د قيامت په ورځ د گناهگارانو د بخښنې د پاره کوي -

هر چې ستا د شفاعته بې نوا شو
هغه واړه خلقه سره سمه ده (حافظ محمد)

**ـــ كول**:- (۱) سفارش کول -(۲) د گناهونو د بخښنې د پاره خداے پاک ته سفارش کول -

**ـــ كوونكے**: - (کَ+وُو+ن+کے) (۱) سفارش کوونکے - سپاربښتي - (۲) د گناهونو د بخښنې سفارش کوونکے - مُراد ترې حضور پاک ص دے -

**شفاف**: - (شَ+فا+ف) (ع - صف مذ ، مو - ه) هغه صفا څېز چې اورې پورې په کښې ليدے شي - لکه شيشه ، بلور - اوبهٔ -

**شفافيت**: -(شَ+فا+في+يَ+ت) (اس - مذ ، ج -ونه) د شفاف "بودلو" خاصيت - د څهٔ څيز هغه خاصيت چې د سره صفا وي چې اورې پورې په کښې ليدے شي -

**شفاهي**: - (شِ+فا+هي) (اس - مو) هغه څيز کار يا عمل چې شونډو سره تعلق لري - زباني -

**ـــ ادب**:-(اَ+دَ+ب) (اس - مذ ، (نظم يا نثر) چې په ليک کښې نهٔ وي راغلے او پشت په پشت زباني ياد ساتلے شوے وي -

**ـــ امتحان**:- (اِ+م+ت+حا+ن) (ف تر - مذ ، ج - ونه) هغه امتحان چې زباني اخستے شي - يعنې جواب په ليک نهٔ شي غوښتے - امتحان اخستونکے - (عموماً) سوال هم زباني کوي او امتحان ورکوونکے جواب زباني ورکوي -

**ـــ دليل يا دلائل**:- (دَ+لي+ل/دَ+لا+ء+ل) (ف تر - اس) هغه دليل يا دليلونه (حجتونه ثبوتونه) چې زباني ورکړے شوي - په ليک کښې نهٔ وي - (لکه: د جانبينو شفاهي دلائل) -

**شفت**: - (شَ+فَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) شونډه - لب -

چې په ذم د پاک سرشتو شونډې سپړي
په سکروټو د دوزخ دواړه شفت بردي (حافظ)

**شفتالو** :- (شَ+فَ+تـا+لُو) (ف-اس-مـذ ، ج-لان) (۱) شـلتالو-مشـهوره مېـوه-
(۲) د معشوقې بوسه-
**شفتل** :- (شَ+فَ+تَ+ل) (ف+صف مذ ، مو-ه) (۱) بدکار او بدمعاش سړے-
(۲) بدکاره او فاحشه ښځه-
**شفتل** :- (شَ+فَ+تَ+ل) (اس-جم) شوتل-مشـهوره ګيـاه چې د څارويوخوراک
ده-په کر پېدا کوله شي-
**شفتين** :- (شَ+فَ+تَے+ن) (ع-اس) دوه شونډې-دواړه لب-
**شـفټ** :- (شَ+فَ+ټ) (انـګ-اس-مـذ ، ج-ونـه) دور-دورانیـه-پـه کارخـانو
وغېـره کښـې چې د کـار دپاره عموماً دوه وختونه مقرر شـوي وي-هـر
دوران ته شفټ وائي-لکه وړومبے شفټ دويم شفټ يا د شپې شفټ
**شفټ** :- (شِ+ف+ټ) (انګ) د يو ځاے نه بل ځاے ته خوځېدل-يا تلل-
**ـــــ کول**:- د يو ځاے نه بل ځاے ته تلل-خصوصاً د کـور ساز وسامان سره د
يو کور نه بل کور ته تلل-
**ـــــ کېدل**:-د يو ځاے ن بـل ځـاے تـه حرکت کول د يـو کـور نـه سره د سـامان
وغېره بل کور ته تلل-
**شـفعه** :- (شُ/شُـو+فَ+عَ) (ع-مـو) (۱) ګوانـډتوب-ګاونـډ-همسـايګي-
(۲) د ګاونډتوب حق-هغـه حق چې د ګاونډ زمکـه او کـور پـه بېعـه
اخستو په حقله وي-
**ـــــ کول**:- قاضي يا عدالت ته د يوې خرڅې شوې زمکې يا د کور پـه حقلـه
د خپل ګاونډ په بنياد د خپل حق دپاره ، عرضي يا درخواست کول-
د خرڅې شـوې زمکـې يـا کـور پـه حقلـه د ګاونـډګيرۍ پـه بنيـاد ، د
خپل حق د فوقيت درخواست کول-
**ـــــ کوونکے**:-(کَ+وُو+ن+کَے) (اس فا ، ج-کي) هغه سړے چې په عـدالت کښـې
په خرڅه شوې زمکه يا په کور د خپل حق دعوىٰ کوي-
**ـــــ د شفعې حق**:-هغـه حق چې د زمکې يـا د کـور پـه بېعـه اخسـتو پـه حقلـه د
ګوانډي وي-
**شفق** :- (شَ+فَ+ق) (ع-اس-مذ ، جو-ونه) **هغـه سرخي چې د نمر د پرېوتو نـه**
پس د قبلې طرف ته په اسمان کښې ښکاره کېږي يـا هغـه سرخي چې د
نمر د ختو نه اګاهو وي-
نمرختۀ طرف ته په اسمان کښې پېدا کېږي
چـې افـتاب ئـې راښـکاره کـړلـه شـفـقه (خوشحال)
**شفقت** :- (شَ+فَ+قَ+ت) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) مهرباني-رحم-غم خواري-
لاهــک بـه ئـې وژلے وم پـه زهــرو
که مې وے مهرو شفقت په پلار و مور کښې (حميد)
**ـــــ کول (په چا)** :-(۱) پـه چا ډېـره مینـه محبت کـول-(۲) چاسـره د مهربـانۍ او
رحم سلوک کول-
**ـــــ لرل (په چا)**:-(وـــــ شفقت کول)
**شفقي** :- (شَ+فَ+قي) (اس-صف) د شفق په رنګ-سُور-
**شـفل** :- (شَ+فَ+ل) (انـګ) ګډو وډ کونـه-ګـډ وډول-د تـاش پـاڼې ګـډې وډې
کول-
**شفوي** :- (شَ+فَ+وي) (اس-صف) (۱) د شونډو سره تعلق لرونکے-لبي (۲) هغـه
حرفونه (توري) چې په شونډو ادا کولے شي-شونډيز توري (يعني-مَ-نَ-او وَ)
**شـفيع** :- (شَ+فـي+ع) (ع-اس-فـا) (۱) شـفاعت کـوونکے-سـفارش کـوونکے-
سفارشي-
(۲) حضور ص چې د قيامت په ورځ به د ګناهګارانو شفاعت کوي-
ته شفيع د قيامت ئې
خوشحال و ساته له اوره (خوشحال)

**ـــــ الامم**:- (عُ+) ل+اُ+مَ+م) (ع تـر-صـف مـذ) د اُمتونـو شـفاعت کـوونکے-د
حضـور پـاک ص لقـب دے چـې د قیامـت پـه ورځ بـه ټولـو اُمتونـو
ګناهګارانو د بخښنې سفارش کوي-
ع: پيروي د پېغمبر کړه چې شفيع دے د امم (حافظ)
**ـــــ المذنبين**:- (عُ+ل مَ+ذ+نِ+بِي+ن) د ګناهګارانو شفاعت کوونکے-مـراد تـرې
رسول الله صلعم دے-
شفيع لمذنبين چې شوې د خوار امت په حق کښې
زۀ شـرمېـدے مختـورن نـه شـوے زمـا سرداره (حافظ)
**شـفيق** :- (شَ+فـي+ق) (اس-صـف ، مـذ ، ج-قـه) شـفقت کـوونکے-مهربانـه-
دوست
اول غم د يار و ماوتـه غليم وۀ
اوس تر ينه بل څوک نۀ لرم شفيق (خوشحال)
**شق** :- (شَ+ق) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) (۱) چاود-چاوند-څیرې-
چې صدف ئې د زړۀ شق د مينې موج کا
پـــه نـفس کښې ئې پـېدا دُرّ يتـيم شي (سعيد)
(۲) د څۀ کار په چا باندې ګران "بودل" دشوار-
**ـــــ کول**:- چول شکاف-پېدا کول-څیرې کول-
چې ئې مياشت کړه د اسمان د پاسه شقه (خوشحال)
**ـــــ کېدل**:-چاودل-څیرې کېدل-
**ـــــ د مدرسې داخلي**:-(اس-مذ) د مدرسې (سکول) مکتب) د ننـې برخـه (د
خارجي شق په مقابله کښې)-
**ـــــ د مدرسې خارجي**:-(اس-مذ) د مدرسې (مکتب سکول) بهر نۍ حصه
**شق القمر** :-(شَ+ق+ق+ُل+قَ+مَ+ر) (ع تر-اس-مذ) د شپوږمۍ پـه مېنځ چاودنـه
يا دوه ځايه کېدنه-د حضور پاک صلعم يوه معجزه وه-
شط د رود نيل که د موسىٰ په حکم وشو
شـق د قـمر شۀ په فرمان د محمد ﷺ (خوشحال)
**شقّ** :- (س+ق) (ع-اس-مذ ، ج-ونه، عرج:شقوق) (۱) د څۀ څيز ټکړه-ټوټه
(۲) د غرۀ يو ژۍ-(جي) (۳) دوست-مهربان-ورور-
**شـقاق** :- (شِ+قـا+ق) (ع-اس-مـذ ، ج-ونـه) د شـمني-مخالفـت-عـداوت-
ميرڅي-
**شقاقل** :- (شَ+قَا+قُ+ل) (ع-اس جم) د يوې دوائي نوم دے-
**شقاوت** :- (شَ+قـا+وَ+ت) (ع-اس-مـذ ، ج-ونـه) (۱) بـدبختي-بدنصيبي-کـم
بختي-(۲) د زړۀ کلکوالے-چې رحم ترس په کښې نۀ وي-
**شقائق** :- (شَ+قا+ئي+ق) (ع-اس-مـذ ، ج-ونـه) د لالـه ګـل-(دا لفظ د واحد او
جمع دواړو د پاره راځي)-
تۀ خوبا د شقائق په زړۀ کښې داغ ږدې
چـې پـه شـين درومې و چـمن ته (خوشحال)
**شقه** :- (شَ+قَ) (اس-مو) (وـــــ شکه)
**شُقه** :- (شُ+ق+قَ) (ع-اس-مو ، ج-شقې) د کاغذ ټکړه-د ټوکي (کپړې) يوه
ټکړه جنډۍ-
**شقي** :- (شَ+قي) (ع-اس-مذ ، ج-ان) بدبخت-بدمرغه-
شقي سعيد دواړه پېدا کېږي د مـــادر په شکم
پـه شرعـه درومه دا قـدرت د رب تعالىٰ وګـڼه (حافظ)
**شـقيق** :- (شَ+قي+ق) (اس-مع-مـذ) (۱) د بلـخ د ښـار د يـو مشـهور صـوفي
بزرګ نوم-(۲) ورور-
عشق څۀ هسې اسان نۀ دے همره خلقه
پـــه بلخيو کښې کـريو سـړے شقيق شو (خوشحال)

**شقیقه** :- (شَ+قي+قَ) (ع-اس-مو ، ج-قې) (۱) د غوږ سره د تندي اړخ- (۲) نیم سرے-د نیم سري دردِ -

**شک** :- (شَ+ک) (اس -مذ ، ج-ونه) (۱) شبه-په څهٔ کار یا څیز کښې د یقین نیشتا-په شک روژه (روجه) هم نهٔ ماتیږي- (۲) وهم -د شک علاج لقمان حکیم سره هم نشته-

**ــــ اُباسل یا ایستل**:- (د زړهٔ) شک لرې کول-خبره یقین ته وریستل-د شک صفای کول-

**ــــ اچول**:-(په زړهٔ کښې) په زړهٔ کښې شک شبه پیدا کول-

**ــــ وزیر**:- (وزیر) شک کول-شک لرل-

**ــــ پیدا کول**:- (په زړهٔ کښې) شک شبه راولاړول-

**ــــ تېرېدل**:- (په زړهٔ کښې) په زړهٔ کښې د څهٔ خبرې ، د صحت او درستۍ په حقله شبه پیدا کېدل-

**ــــ څرګندول**:- د څهٔ خبرې په حقله د خپل یقین اظهار کول-

**ــــ رفع کول** :- (و---- شک لرې کول)

**ــــ شکوک**:- (ش+کُو+ک) (فپ تر ،اس) شک شبه-بدګماني- شکونه- شبهې لکه په زړهٔ کښې دې څهٔ شک شکوک وي ، هغه وباسه-

**ــــ لرې کول**:- (د زړهٔ نه) شک و شبه ویستل د شک خبرې په حقله صفای کول-خبره یقین او اعتبار ته وروستل-

**ــــ ورک**:- (و+ر+ک) (ق-صف مذ ، مو-ه) بالکل بې خبره-بېخې ناپوهه- لکه زهٔ په دې خبره شک ورکونه یم-

**شک من** :- (ش+ک+م+ن) (فپ تر -صف ، مو-ه) شک کوونکے-شبه کوونکے-

**ــــ توب**:- (تو+ب) (و---- شکمن والے)

**ــــ والے**:- (وا+لے) (اس-مذ) شک من توب-شکمنتیا -شکمن کېدنه-

**شک** :- (شَ+ک) (اس-صف ، مو-ه) نېغ-سم-قائم-

**ــــ اودرول** ، غوړونه:- غوړونه نېغ اُودرول-غوړونه نېغول یا به ورکول-

**ــــ شک کېدل**:- نېغ نېغ او شغ شغ کېدل-

**ښکار** :- (اس-مذ ، ج-ونه) (۱) ښکار -خکار -صید - (۲) (باز) هغه جینې (یا هلک) چې څوک ورپسې وي- (۳) مفت په لاس راغلې څیز- ویړیا څیز-

**ــــ کول**:- ښکار کول-

**ــــ کېدل**:- ښکاربدل-

**ــــ ګاه**:- (ګا+ه) (اس-مذ ،ج-ونه) (۱) هغه ځنګل یا علاقه چې د ښکار دپاره مخصوص کړے شوې وي- (۲) هغه ځنګل یا علاقه چېرته چې د څهٔ قسم ښکار ځناور موندے شي-

**شکار** :- (ش+کا+ر) (اس-مذ جم) شخار -اردو کښې ورته سجي وائي)-

**شکارل** :- (ش+کا+ر+ل) (مص مت) (۱) پارول-تحریک ورکوول-راغبه ول (۲) سپے چا پسې کول-کشکارول-بګي کول-

**شکارولے** :-(ش+کا+ر+لَے) (مف-مذ ، ج-لي) پارولے-کشکارلے-چا پسې کړے-

**شکارنګ** :- (ش+کا+رَ+ن+ګ) [ق-حمص] (و---- شکارنه)

**شکارنه** :- (ش+کا+ر+نَ) [حمص] پارونه-کشکارنه-چا پسې کوونه-

**شکارُونکے** :- (ش+کا+رُ+ن+کے) (فاع-مذ ، ج-کي) پاروونکے-کشکارونکے-چا پسې کوونکے-

**شکاره** :- (ش+کا+ر) د شکور بدل شکل دے چې اضافي او مجروري حالت کښې استعمالیږي-

**شکاري** :- (ش+کا+ري) [اس-مذ ، ج: یان] ښکاري-

**شکارے** :- (شُ+کا+رے)(و---- شوکارے)

**شکاګو** :- (شِ+کا+ګو) (اس -مع) په امریکه (ریاست هائے متحده) کښې یو لوے ښار

**شکال** :- (ش+کا+ل) (ف-اس ، مذ) (۱) د څاروي وغېره په پښو کښې پړے اچول د پښو نه تړل-شکېل /ښکلېل- (۲) هغه پړے چې د سر کښې ځناور مخکښې او وروستې پښې, ته د قدم په رفتار اچولې شي-

**شکاڼ** :- (ش+کا+ڼ) (اس-مذ) شکوڼ-مشهور ځنګلي ځناور چې په بدن ئې تېرهٔ تېرهٔ ازغي (غشي) وي چې دښمن پرې ولي-

**شکاڼه** :- (شَ+کا+ڼ+ه) (اس-مؤ) (و---- شکاڼ)

**شکاوېه** :- (ش+کا+و+ڼ+هَ) (اس-مو ، ج-ړې) (۱) د چا په دوکه او چل ول څهٔ څیز تر لاسه کول-غاغلتي-شوکوول- (۲) پرې کوونه-غوڅوونه-

**ــــ کول**:- د چا نه څهٔ څیز په دوکه داکه تر لاسه کوول-شوکوول-په غلا غلتې اخیستل-

**شکایات** :- (ش+کا+یا+ت) (اس ، ج) د شکایت جمع ده- (و---- شکایت)

**شکایت** :- (شَ+کا+يَ+ت) (ع-ا س-مذ ، ج-ونه) (۱) ګیله-ګله-شکوه-ژړا- (۲) دڅهٔ تکلیف یا نقصان وغېره خلاف بیان یا درخواست- (۳) تکلیف- بیماري-ناروغتیا -

**ــــ رفع کېدل**:- (و----شکایت لرې کېدل)

**ــــ کول**:- د چا د لاسه د ظلم زیاتي یا د نقصان رسېدلو خلاف ګیله کول

شکایت کوم له خپل شنډه بخته
ګله نه کړم له بې چونه مهربانه
یا
په مانې ئې هم خوشحال شم هم دلګیر شم
لکه څوک چې له چا شکر و شکایت کا (خوشحال)

**ــــ کېدل (د څهٔ)** :- تکلیف کېدل-بیماري راتلل- ناروغه کېدل-لکه د پښې د درد شکایت راته شوے وهٔ-

**ــــ لرې کول**:- د ګیلې شکوې سبب لرې کول-د چا تکلیف ، نقصان لرې کول

**ــــ لرې کېدل**:- (۱) د شکایت او د ګیلې شکوې باعث نه پاتې کېدل- (۲) تکالیف بیماري لرې کېدل-

**ــــ نامه**:-(نا+مَ) (اس-مو ، ج-یې) هغه کاغذ چې په کښې شکایتونه لیکلي شوي وي-

**شکایتي** :- (ش+کا+يَ+تي) (اس-فا-مذ) (۱) شکایت کوونکے-ګیله کوونکے (۲) (طنزاً) هغه کس چې عادتاً شکایتونه او ګیلې مانې کوي-

**شکبا خېل** :- (شَ+ک+با+خېل) (اس مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې د خلي خېلو څانګه ده او خلي خېل د شمن خېل محسود دي-

**شکر** :- (شَ+ک+ر) (ف-اس-مذ) (۱) هغه خوږه چې د ګنې وغېره نه راوښکے شي خو چې لابوره وي او چکۍ تړې نهٔ وي جوړې شوې- شکره- (۲) ځیني وخت چیني ته هم وائي-

**شکر** :- (شَ+کَ+ر) (ف-اس-مذ) د سابقې په طور نورو الفاظو سره راځي- (مثالونه ئې وړاندې راځي)-

**ــــ امېز**:- (اَ+مي+ز) (ف تر -صف-مذ ، مو-ه) (۱) هغه څیز چې شکره په کښې ګډه شوې وي خوږ-شیرین- (۲) د خبرو د صفت په طور هم استعمالیږي-لکه شکر امېزې خبرې-خوږې خبرې-

**ــــ بار**:-(با+ر) (ف تر -صف-مذ ، مو-ه) (۱) شکره- ورَوونکے- (۲) ډېر خوږ ژبے-

**ــــ باري**:-(با+ري) (ف تر -اس-مو) شکره وروونه-شکرې توېونه- مجازاً خوږې خوږې خبرې یا تقریر-

**ــــ بټې**:غنم-زاړهٔ غنم-

**ــــ بوټې**:- (و---- شکر بټې)

**ـــــ پاره**:-(پا+رَ) (اس-مو ، ج-رې) (۱) د شکر ټکړه (۲) یو قسم میټهائي - (۳) هغه خوږې مانې چې بوټي کښې وچې شوې وي- (۴) ډېره خوندناکه او خوږه خبره - (۵) د یار شونډې -

**ـــــ تتي**:- (ت+تي) شمشتی -

**ـــــ تري**:- (ت+ري) (فپ تر - اس جم) سپین تري - سپینه چیني - د ېسې جوړه شوې چیني -

تلخګي مې د هجران له حلقه نهٔ ځي
که هر څو خورم د وصال شکر تري (حمید)

**ـــــ خا**:-(خا) (ف تر - صف) شره وونکے - (جوړنکے) شکر خور - خوږې خوږې خبرې کوونکے - (عموماً د طوطي په صفت کښې وئیلے شي) -

**ـــــ خند**:- (خَ+ن+دَ) خوږه خندا - تبسم - مُسکا - موسکا -

دلنوازه ، سـرفرازه ، عشوه سـازه ، لعبت بازه
خود پسنده ، سرلبنده ، شکرخنده ، لب شکره (خوشحال)

**ـــــ خواب**:- (خ+وا+ب) یا (خا+ب) د سحر خوب - چې سړي له ډېر خوند ورکوي او پاڅېدو ته ئې زړهٔ نهٔ کېږي -

**ـــــ خور**:-(خو+ر) (ف تر - صف - مذ ، مو - ه) هغه کس چې تل خواږهٔ او شکرې خوري یعني ښهٔ خوراک کوونکے - شکر خور له خداے شکرې ورکوي (متل) -

**ـــــ دان**:-(دا+ن)

**ـــــ داني**:-(دا+ني) (ف تر (۱) مذ ، ج-ونه (۲) مؤ : نی) هغه لوښے چې پکښې شکره کښېښودے شي - چیني دان -

**ـــــ رنجي**:- (رَ+ن+جي) (ف تر - اس - مو) د شکرې په شان خفګان - مجازاً معمـولي شـان خفګـان - لـږ شـان زړهٔ بـداوے - (خصوصاً د دوستـانو او خپلوانو تر مېنځه هغه خفګان چې په اسانه لرې کیدے شي -

**ـــــ ریز**:- (رې+ز) (ف تر - صف ، مذ ، مو - ه) (۱) شکره - وروونکے (۲) ډېر خوږ ژبے - خوږ -

مجلس ستاسو شکر ریـز ادب امـېز وۀ
وارئـې تـــېر شـو دور راغــے د رټلیو (حافظ)

**ـــــ ریزي**:- (رې+زي) (وـــــ شکر باري)

**ـــــ فـروش**:- (فَ/فَ+رو+ش) (ف تـر - اس - مـذ ، ج - ان) شـکرې خرڅـوونکے - مجازاً هغه کَس چې خوږې خوږې خبرې کوي - (عموماً د معشـوقې په صفت کښې وئیلے شي) -

**ـــــ فروشه**:- (فَ/فَ+رو+شَ) (فپ تر - اس - مو ، ج - شې) د شکرو فروش تانیث دے - (وـــــ شکر فروش)

**ـــــ فشان**:-(فَ+شا+ن) (وـــــ شکر بار)

**ـــــ فشاني**:- (فَ+شا+ني) (وـــــ شکر باري)

**ـــــ قند**:-(قَ+ن+د) (ف تر - اس مذ ، ج - ونه) (۱) شکر او قند دواړه یو معنی لري - مجازاً ډېر خوږ څیز(۲) یو قسم میټهائي -

باغ کښې نهالي کړه نیشکر چې تر خواږه پیدا شي
لـه دا نـورو بـه پـه هېـڅ رنـګه شـکر قند و نـهٔ کړي (حافظ)

**ـــــ ګنج**:-(ګَ+ن+ج) (اس مع) لفظي - د شکرې خزانـه - د مشـهور بـزرګ شـېخ فریدالدین رحمته الله علیه لقب دے - زیارت ئې په پاک پټن کښې دے - د حضرت بختیار کاکي رحمته الله علیه مرید وۀ -

**ـــــ ګنے**:-(ګَ+نَے) (اس - مذ ، ج - ګني) (۱) د مچو ګګ - (۲) ګنے چې شکره ترې پیدا کېږي -

**ـــــ لب**:- (لَ+ب) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) لکه د شکرو یا د شکرو نه جوړې شونډې لرونکې - مجازاً ډېر خوږ ژبے - ډېر خوږ بیانه - (د معشـوقې د صفت په طور وئیلے شي) -

په بوسه د شکر لبو زوړ ځوانېږي
دا خـبره تـجربـه ده د خوشحال (خوشحال)

**ـــــ شیرو**:- (شي+رو) پي. او شکره سره ګډ - مجازاً ډېره خوږه دوستانه - ډېر زیات اختلاط -

**ـــــ ګل**:- (ګُ+ل) (اس - جم)(۱) ګلقند چې د ګل د پاڼو او شکرو نه جوړولے شي (۲) مجازاً د معشوقې شونډې -

**ـــــ شُکر**:- شُ/شُـو+ک+ر) (ع - اس - مـذ ، ج - ونـه) (۱) د چـا د احسـان یـا د نیکی په موقع د هغه صفت یا مننه -(۲) د الله تعالی د احسان او فضـل و کرم مننه -

شکر نعمت دے د حق تر سره کړه
یا استـغفار دے تـر بـدو بر کړه (سعید)

**ـــــ اوباسل**:- شکر ادا کول - د خداے پاک په نعمت شکر کول -

حافظه تل شکر اوباسه په دولت د اسلام
دین د نبي اخـر زمان لویـه کیمیا وګڼه (حافظ)

**ـــــ ایستل/اباسل/ویستل**:- د څهٔ مصیبت ، تکلیف وغېره نه د خلاصې موندلو په موقع وئیلے شي - لکه شکر مې وویست چې ددغې بلا نه خلاص شوم یا شکر وباسه چې په سلو روپو خلاص شوے -

**ـــــ په ځاے راوړل**:- اصلاً د فارسي د محاوري "شکر بجا اوردن" ترجمه ده - په ښـو ترجمو یـا پـه لیکونو کښې لیدے شي - شکر ادا کول - د شکر اظهار کول -

**ـــــ دار**:-شکر ګذار -

په خپل حال به شکر دار شي هزار ځله
کـه بـیان کړم دوزخیان ته ګذران خپل (حمید)

**ـــــ دے**:- (=دَے) (۱) د احسـان د منلـو د ښرګنـدونې الفـاظ دي - (۲) د یـو مصیبت یا تکلیف وغېره نه د خلاصېدو په وخت وئیلے شي -

**ـــــ دے د خداے پاک**:- د الحمد لله! یو قسم لـه ترجمـه دے - د خداے پـاک د کوم فوري احسان او فضل د منني په طور وئیلے شي -

**ـــــ صبر**:- (صَ+ب+ر) (عف تر - اس مذ) د خداے پاک پـه کړو شکر ایستل او چې څهٔ ورپېښ شي په هغې صبر کول - شکر واغونده او صبر د سر لاندې کړه (مقوله) -

**ـــــ ګذار**:-(ګُ/ګُو+ذا+ر) (ف تر صف مذ ، ج - ه) شکر ادا کوونکے - د څهٔ نیکی او احسان مننه کوونکے -

**ـــــ ګذاري**:- (ګُ/ګُو+ذا+ري) (ف تر - اس - مو) شکر ادا کوونه - مننه -

**شکرانه** :- (شُ/شُو+ک+را+نَ) (اس - مـو ، ج - نـې) (۱) د چا پـه نیکۍ شـکر ادا کوونه - مننه - (۲) نذرانه - چا پیر مرشد له څهٔ پیسې ټکې ورکول - (۳) د قـران شـریف عوضـانه - (د قـران پـاک د احتـرام لـه کبلـه دې پـه قیمت یـا بیعه نهٔ وائي - ځکه چې د قران قیمت یا بیعه هډو څهٔ کیدے نهٔ شي) - (۴) ځینې وخت د چا څهٔ کار یا د خدمت بد (عوضانې) ته هم وائي -

**ـــــ خور**:-(خو+ر) هغه سړے (پیر وغېره) چې د مریدانو شکرانې اخلي -

**ـــــ خوري**:- (خو+ري) د شکرانې پېسې ټکې اخستل او خوړنه -

**شکراني** :- (شُ/شُو+ک+را+ني) (اس - ج) (۱) د شکرانه جمع ده - (۲) د "شکرانه" اضافي او مجروري حالت دے -

**ـــــ ټولول/جمع کول**:- د خلقو نه چاپېر یا زیارت وغېره په نوم منلې شوې رقمونه او غلې وغېره ټولول -

**ـــــ خوړل**:- د مریدانو وغېره نه شکرانې وصولول او په خپل کار راوستل -

چې حلال کسب ئې نهٔ وي شکرانې خوري
خـدایـه بـخن پـه شبـخـی مـکار شم (خ خ خ)

**شکر خېل** :- (شَ+کَ+ر+خېل) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د مُسکي خېلو څانګه ده او مسکي خېل (ووزي خېل ، سُمت خېل ، اتمان زئ ، درويش خېل وزير دي -

**شکر خېل** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د کُنډي څانګه ده او کنډي د پيرباخېل ، هاتي خېل ، شين خېل ، احمد زئ ، درويش خېل وزير دي -

**شکر زئ** :- (شَ+کَ+ر+زَ+ئ) (اس -مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د لنډ احمد څانګه ده - لنډ احمد ،احمد خېل،او باخېل ، شيراني دي -

**شکرکه** :- (شَ+کَ+ر+کَ) (ق - اس -مو ، ج - کې) يو قسم سپړۍ چې شين رنګ لري - سلېښن دا وي او د ونو پاڼو او نورو بوټو کښې پيدا کېږي - چې پاڼه مړاوې او وچه کړي بيا په زمکه وغورځېږي - د قندهار په ژبه کښې ورته شوته وائي -

**شکره** :- (شَ+کَ+رَ) (ه اس - مذ) تيز فهمه - هوښيار او چالاک ماشوم -

**شکره** :- (شَ+کَ+رَ) (اس - مو - ج - شکرې) (۱) هغه خواږهٔ چې د ګنو وغېره نه جوړېږي چې د ګنو د يشيدلي ټينګ شربت نه چکې . جوړې شي نو ګوړه نومېږي او چې کومه نرۍ بوره پاتې شي ياد ګوړې د چکو نه وويستے شي هغه شکر نومېږي - (۲) چيني - نبات - قند - ته هم وائي -

**ـــ ګل**:- (ګَ+ل) (پ تر - اس - مو) د سپوږمۍ د حساب د کيلنډر دويمه مياشت - صفر

**شکرۍ** :- (ش+کَ+رَ+ی) (اس - مو) د شکر تصغير - وړوکې شکرې -

**شکري** :- (شَ+کَ/کَ+ري) (فپ تر -صف) د شکرو په شان يا د شکروند نه جوړ شوے -

**ـــ تل**:- (ت+ل) (ه - اس - مو) د يو قسم مېتهائي نوم دے چې شکر سره کونځلې ګډولے شي - تلنګړې -

**شکري** :- (ش+ک+ري) (اس - مذ) ديوې مرغۍ نوم دے - خراړه -

**شکري** :- (ش+کَ+ري) (۱) د "شکور" اضافي او مجروري حالت - (۲) د شکرې جمع -

**ـــ واله**:-(وا+لَ) (اس - مذ)د شکري خاوند - مجازاً چابړي واله - هغه کس چې په شکرۍ يا چابړۍ کښې سودا په سر يو ځاے نه بل ځاے ته وړي -

**شکرے** :- (شِ/ش+ک+رے) (اس - مذ ، ج - ي) مشهور ښکاري مارغهٔ - د نر بانبې يو قسم -

**شکرے** :- (ش+کَ+رے) (اس - مذ ، ج - ي)د ميزري وغېره نه جوړ شوې لويه ټوکره - (ځينې خلق ئې جمع شکرونه هم وائي) -

**شکرين** :- (شَ+کَ+ري+ن) [صف] شکرو واله - خواږه -

ستا د شکرينو شونډو
اشتياق لرم بار بار (خوشحال)

**شکرين** :- (شَ+کَ+ري+ن) (اس - مذ) شکرين يو خوږ څيز چې ډېر زيات خوږوالے لري خو شکره ده - د شوګر (ذيابيطس) مريضان ئې د چينۍ په ځاے استعمالوي - (پوره نوم ئې "سوډيم شکرين" دے)-

**شکريه** :- (شُ+ک+ري+يَ) (عپ تر - اس - مو ، ج - شکرئې) (۱) شکر - مننه - (۲) ځينې وخت دا لفظ د پوره جملې په ځاے هم استعمالېږي - شکريه! يعنې ستا شکريه ادا کوم - ستا د نېکۍ شېګړې يا د احسان مننه کوم -

**ـــ ادا کول**:- د چا د نېکۍ يا احسان مننه کوم -

**ـــ ده**:- د استحسان جمله ده يعنې ستا ددې مهربانۍ يا احسان مننه کول - ډېره من

**ـــ وړاندې کول**:- شکريه ادا کول - د تشکر اظهار کول - مننه څرګندول-

**شکست** :- (شِ+کَ+س+ت) (ف - اس - مذ ، ج - ونه) ماتې - ښېلات - هزيمت

چې د نفس په جنګ شکست د ځان کا
د ما هغه سور خوښېږي په لښکر کښې (سعيد)

**ـــ خورده**:- (خُ+ر+دَ) (ف تر - صف) هغه کس چې ماتے ئې موندلے وي - ماتے خوړلے - شکست يافته -

**ـــ خوړل**:- ماتې موندل - ماتې خوړل - مقابله جنګ وغېره بېلل-

**ـــ کول**:-ماتول - شکن ورکول - تاووهل -

دواړه زلفې ئې زما د زړهٔ په قصد شکست کړې
زهٔ په ځان د زړهٔ بندي په هر يوهٔ شکست يم (خوشحال)

**ـــ ورکول**:- ماتې ورکول - هزيمت ورکول - جنګ يا مقابله د چانه ګټل-

**ـــ وريخت**:- (تو) ري+خ+ت) (ف تر - مذ) ماتول او غورځول - د عمارت وغېره د زوروالي په وجه ماتېدل او دوړيدل -

**ـــ يافته**:-(يا+ف+تَ) (و--- شکست خورده)

**شکستن** :- (ش+کَ+س+تَ+ن) (ف مصدر) ماتول - (په شعرونو او نثر نګارۍ کښې استعمال شوے دے) -

**شکته** :- (ش+کَ+س+تَ) (ف - صف) مات - مات شوے - مات کړے -

په شکسته ببړۍ کښې ناست واثق ستا په فضل
ددې ببړۍ بې ستا له فضله مسمار پاتې نهٔ شه (حافظ)

**ـــ بال**:- (با+ل) (و---- شکسته پر)

**ـــ پر**:- (پَ+ر) (ف تر -صف ، مذ ، مو - ه) مات وزرے چې وزر ئې مات وي - د الوتو نه پاتې - بې وسه - لاچاره - مجبوره -

زړهٔ مې خوري هوا پرمې پيرۍ رنځونو مات کړه
نهٔ رسي مارغهٔ شکسته پرتر خپل مراده (حافظ)

**ـــ حال**:-(حا+ل) (ف تر - مف مذ ، مو - ه) چې حال ئې مات ګډ وي - بد حاله - په بدحال کښې -

**ـــ حالي**:- (حا+لي) (ف تر - اس - مو) (۱) بدحالي - خراب حالت - (۲) خواري - نيستي - غريبي -

**ـــ خاطر**:- (خا+ط+ر) (ف تر - صف - مذ ، ج - مو - ه) مات زړے هغه چې زړهٔ ئې مات وي - نا اميده -

**ـــ نفس**:- (نَ+فَ+س) (ف تر -صف) هغه چې ساه ساه شوې وي -

**ـــ نفسي**:- (نَ+فَ+سي) (اس - مو) ساه ساه کېدنه -

**شک شک** :- (شَ+ک+شَ+ک) [مذ] نبغ نبغ - شغ شغ -

**شکشکه** :- (شَ+ک+شَ+کَ) (ق - اس مو ، ج - کې) د سپينتو د جوارۍ يو څيز -

**شکل** :- (شِ/شَ+کَ+ل) [ف - اس مذ ، ج - ونه/اشکال] (۱) صورت - څيره - وضع قطع - (۲) طريقه - انداز - (۳) تصوير - تدبير - صورت -

**ـــ اړول**:- (و-- شکل بدلول)

**ـــ بدلول**:- صورت بدلول - څيره بدلول - وضع قطع بدلول -

**ـــ تبديلول**:- (و--- شکل بدلول)

**ـــ شمائل**:- (شَ+ما+ئي+ل) (عف تر - اس جم) صورت او عادتونه خصلتونه -

که په شکل شمائل سړے ليدے شي
سر تر پايه پرېوار دے هغه کس (خوشحال)

**ـــ وخوري**:- د بدعا جمله ده چې تهٔ خپل صورت وخوري - شکل دې ورک شه - تهٔ مړ شې -

**ـــ ورانول**:- (۱) صورت خرابول - بشره يا څيره خرابول - صورت بدرنګه کول - (۲) ناخوښي څرګندول - (۳) جرغونے (ژرغونے) کېدل -

**ـــ وشباهت**:- (الو)+شَ+با+هَ+ت) د مخ يا د بشرې صورت او شبيه - مخ بشره - په ظاهر چې څنګه په نظر راځي - کړهٔ وړهٔ - انګ ډنګ - ډول - انداز - لکه د شکل و شباهت نه خو ښهٔ سړے ښکاري -

**په ـــ**:- په صورت - په شان - غوندې - (لکه د فلاني په شکل) -
**په څهٔ ـــ**:- څشکله - په کومه طریقه - په کوم ډول -
دوه مئين چې پـــه هواد وبله بېل شي
دا ے ئې څهٔ شکل د تش سلام مـحتاج کا (خوشحال)
**په دغه ـــ**:- په دغه ډول - په دغه صورت - په دغه طريقه -
**په ظاهر ـــ غلطېدل**:- په ظاهر ډېل ډول تېر وتل - په ظاهري رنګ روغن خطا کېدل
**په هر ـــ**:- په هر صورت (چې وي) په هره طريقه -
**دي ـــ ته خو دي وګوره**:- طنزيه جمله ده چې خپل مخ خو په ائينه کښې وګوره - يعني تهٔ د دې څيز يا کار يا د انعام وغېره لائق نهٔ ئې -
**شکلاً** :- (ش/ش+ک+لَ+ن) (تف) د شکل لحاظ سره - د شکل په طور -
**شکلی** :- (شَ+ک+لَ+ی) (ق - اس - مو) دستار - طره - شمله -
**شکم** :- (ش+کَ+م) (ف - اس - مذ ، ج - ونه) ګېډه - خېټه -
په شکم کښې جوش کوي کلمې ئې پرې کا
د حميم اوبـــهٔ ئې رنځ بــــلا شفـــا دي (حافظ)
**ـــ پرور**:-(پَ+ر+وَ+ر) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) د ګېډې پالـنه کوونکے - ډېر خوراک کوونکے - ګېډور - خېټو -
**شکمپاره** :-(ش+کَ+م+پا+رَ) (ق - اس - مو) د يوې دوائي نوم دے - اسپغول -
**شکمن** :- (شَ+ک+م+ن) (وــــ د "شک" تر لاندې)
**ـــ توب**:-(تو+ب) (وــــ د "شک" تر لاندې)
**ـــ والے**:-(وا+لے) (وــــ د "شک" تر لاندې)
**شکن** :- (ش+کَ+ن) (ف - اس - مذ ، ج - ونه) ماتوونکے - د لاحقې په طور نورور الفاظو سره راځي - (مثالونه ئې وړاندې راځي)
**بت ـــ**:- (ب/بُو+ت) (ف تر - صف ، مذ ، مو - ه) (۱) بت يا بتـان مـاتوونکے - (۲) حضرت ابـراهيم عليـه السـلام چې بت خـانې بتـان ئـې مـات کـړي وو - (۳) د سلطان محمود غزنوي لقب چې د سومنات بتان ئې مـات کـړي وو -
**صف ـــ**:- (صَ+ف) (ف تـر - صـف ، مـذ ، مـو - ه) صـف مـاتوونکے - د دښـمن صفونه ورانه وونکے - ډېر جنګالے - د جنګ مېړهٔ -
**طياره ـــ**:- (طَ+يا+رَ) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) د طيارې ماتوونکے - هغـه خاص توپ چې ګولۍ ئې تر هوائي جهازونو پورې رسي او هوائي جهازونه پرې ويشتے شي -
**شکن (۲)**:- (ش+ک+ن) (ف - اس - مذ ، ج - ونه) ګرونجه - ګونجه - ګنځه -
**شکنبه (۱)**:- (ش+کَ+م+بَ) (ق - اس - مو ، ج - بې) د لوبې يو قسم - خند - چې د دوو کربنو تر مېنځه کولے شي -
**شکنبه (۲)** :- (ش+کَ+م+بَ) (ع - اس - مو ، ج - بې) لړې - د ګېډې هغـه برخـه چې خوراک په کښې جمع کېږي -
**شکنجه** :- (ش+کَ+ن+جَ) (ف - اس - مـو - ج - جې) (۱) هغـه مشـهوره الـه چې څهٔ څيز په کښې کلک نيوے شي - لکه د جلد سازۍ شکنجه - (۲) د مجرم د سزا په طور استعمالېدونکې شکنجه -
(۳) پانه - فانه -
**ـــ کول**:- (۱) پـه شکنجه کښې راګېـرول - (۲) کلک تـړل - (۳) مـال دولت جمع کول - شکنجه کول -
**شکنجی** :- (ش+کَ+ن+ج+ی) (اس - مو) يو قسم غټه دانه - شنجه - خځهٔ -
**شکځه** :- (ش+کَ+ن+(د)+ز) کنځل - بدزباني - د شنام - شکنځل - زيارې -
**ـــ کول**:- (مص تر) کنځل کول - زېږې کول - زيَږي کول -
**شکندړ** :- (ش+کَ+ن+د+ړ) (ق - اس - مو) د ګېډې درد - نس خوږے -
**شکندي خېل** :- (اس مع) د پښتنو قبيله چې د علي زيو څانګه ده او د علي زئ (دولت زئ) اورک زئ دي) (په بله شجره کښې د ماد شکندي خېـل نوم بيا نهٔ موند - مدير) -
**شکنوه** :- (ش+کَ+ن+ډ+ه) (ق - اس - مؤ) د ماشومانو د يوې لـوبې نوم چې په کښې يو بل په کروړو وهي -
**شکنړو** :- (ش+کَ+ن+رُو+) (ا - ق - اس - مذ) لوے شکوڼ - د شکوڼ يو لوے قسم
**شکنه** :- (ش+کَ+ړ+) (اس - مو ، ج - ړې) (۱) د شکڼ مؤنث - ماده شکوڼ -
(۲) (ق) شنډه ښځه -
**شکنه** :- (ش+کَ+نَ) (ق - اس - مو ، ج - نې) د خوراک مشـهور څيـز - پيـاوه سـاړهٔ تودهٔ - تور تاودهٔ -
**د بل په ـــ غوړونه سوځل** (ق) :- د بل په کار کښې دخل ورکول - د بـل د پـاره بې موجبه دليلونه ورکول -
**شکور** :- (ش+کو+ر) (اس - مذ ، ج - ونه) د مېزرو نه جوړه ټوکرۍ چې غـاړې ئې ډېـرې اوچتـې نـهٔ وي - (د ښـانک پـه شـکل) عمومـاً ډوډۍ پـه کښـې کښېښودے شي - چينګرۍ - شکېر -
**شکور** :- (ش+کُو+ر) (ع - صف) (۱) ډېر شکر کوونکے - ډېر شکر ګزار -
(۲) د الله پاک يو صفاتي نوم دے چې معنی ئې ډېر فضل کوونکے ده -
(۳) د مسلمانانو په نومونو کښې راځي -
**شکورشا** :- (ش+کو+ر+شا) (ق - اس - مـو) يو قسم ګياه ده چې پـه پټـو کښې پيدا کېږي -
**شکورے** :- (ش+کو+رے) (اس - مـذ - ج - ري) شکرے - د لوښې يا د ميـزرو نـه جوړه شوې لويه ټوکرۍ -
**شکوک** :- (ش+کُو+ک) (ع - ج) د شک جمع دے - (وــــ شک)
**ـــ پيدا کول**:- بدګماني پيدا کول - په (زړهٔ يا زړونو کښې) شبهې او شکونه پيدا کول - بې اعتباري کول -
**ـــ پيدا کېدل**:- شکونه پيدا کېدل - بدګماني (په زړهٔ کښې) پيدا کېدل -
**شکول** :- (ش+کَ+وُ+ل) (مص مت) د څهٔ څيز نبغ ودرول -
**شکول** :- (ش+کَ+وُ+ل) (مص مت) شلول - څيرل - پاره پاره کول - پرې کول -
**ـــ کېدل**:- شکېدل - څيرې کېدل پاره پاره کېدل - شوک شوک کېدل -
**شکول** :- (شَ+کَو+ل) (مص) (ا ق) بربنډول - (د غسل) لڅ کول - لغړول -
**شکوڼ** :- (ش+کُو+ڼ) (اس - مـذ ، ج - ان /شکانهٔ/شکنيان) مشـهور ځنګلـي ځناور چې په بدن ئې لوے لوے ازغي (غشي) وي چې دښمن پرې ولي -
**شکونګ** :- (ش+کَ+وُ+ن+ګ) [ق - حمص] (وــــ شکونه)
**شکونه** :- (ش+کُو+نَ) (حمص) څېرې کوونه - شلوونه - شېره کونه -
**شکونے** :- (ش+کُو+نے) (اس - مذ ، ج - نې) شکوونکے - شبروونکے - څيروونکے -
**شکوونکے** :- (ش+کَ+وُو+ن+کے) (اس فا - ج - کې) شلوونکے - څيرې کوونکے - شبروونکے -
**شکوه** :- (ش/شَ+ک+وَ) (ع - اس - مو ، ج - شکوے) ګيله - ګله - شکايت - مانه - (اصلاً دا لفظ د عربۍ شکویٰ دے) -
**ـــ شکايت**:- (ش+کا+يَ+ت) (ف تر - مذ ، ج - شکوے شکايتونه) ګيله مانه
**ـــ شکايت کول**:- ګيله مانه کول -
زهٔ رحمان له چا شکوه شکايت نهٔ کړم
نشـته بل دوست او دښمن زما بې تا (رحمان)
**ـــ کول**:- ګيله کول - شکايت کول - مانه کول -
دا زما د محبت اثر نهٔ دے نور څهٔ دے
له رقيـبه چې شـکوه پـه دا غـايـت کا (خوشحال)
**شکوه** :- (ش+کو+ه) (ف - اس - مـذ) (۱) دبدبـه - رعـب - رعـب داب - شـان وشوکت - (۲) د سړو په نومونو کښې هم استعمالېږي -

**شکه** :- (شَ+کَ) (اس-مو ، ج-شکې) هغه جامه چې د نورو جامو د پاسه اغوستے شي-او اوږدۀ لستوني لري-

**شکي** :- (شَ+ک+کي) (صف) (۱) شک کوونکے-شبه کوونکے- (۲) هغه خبرې چې د صحت او رښتياؤ په حقله ئې يقين نۀ وي-غېر يقيني-شک واله-

**ـــــ مزاج**:- (م+زا+ج) (صف مذ ، مو-ه) هغه کس چې د هرې خبرې د صحت او رښتياؤ په حقله شک کوي-

**شکے** :- (شَ+کَے) [اس-مذ] د مار يو قسم-

**شکېب** :- (ش/شِ+کې+ب) (ف-اس-مذ ، ج-ونه) صبر-زغم-برداشت-تحمل-

لږ شکيب ورته په مثل د لوے غر دے

پـه شکـيـب بـه پـه څو پائي مـشتاق ستا (خوشحال)

**شکېبا** :- (شَ+کې+با) (ف-اس-فا) صبر کوونکے-صبرناک-

**ـــــ کېدل**:- صبر اختيارول-صبر کول-راضي کېدل-

بې د يار له ژړبيا مخه گمان مه کړه

چې خوشحال به په بل مخ شي شکېبا (خوشحال)

**شکېبائي** :- (ش/شِ+کې+با+ئي) (ف-اِس-مؤ) (و---- شکېب)

**شَکي خېل** :- (شَ+ک+کي+خېل) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د بندخېلو څانگه ده او بندخېل ، بهلول زئ محسود دي- (په بله شجره کښې د بند خېلو په اولاد کښې د شکي خېلو نوم شته)-

**شکېدل** :- (شَ+کې+د+ل) (مص لا ښوئېدل-خوئېدل-لکه: د بده مرغه مې پښه وشکېده او په زمکه راخلاص شوم-

**شکېدل** :- (ش+کې+د+ل) (مص لا) ختمېدل-انجام ته رسېدل-شک کېدل-

**شکېدل** :- (ش+کې+د+ل) (مص لا) چاودل-څيرې کېدل-پاره پاره کېدل-بڅه کېدل-

**شکېدنګ** :- (ش+کې+د+ن+گ) [ق-حمص] (و---- شکېدنه)

**شکېدنه** :- (ش+کې+د+نَ) [حمص] شلېدنه-څيرې کېدنه-بڅه کېدنه-

**شکېدونکے** :- (ش+کې+دُو+ن+کې) (اس فا ، ج-کي) شلېدونکے ، پاره پاره کېدونکے-څيرې کېدونکے-

**شکېر** :- (ش+کې+ر) (اس-مذ) (و---- شکور)

**شکېزه** :- (ش+کې+زَ) (اس مو ، ج-زې) قيزه-لگام-

**شکېزه** :- (ش+کې+زَ) (ق ، اس-مو ، ج-زې) د تنبو ستن-د کږدۍ ستن-څکيز-سدام-څکيزه-

**شکېل** :- (ش+کې+ل) (اس-مذ ، ج-ونه) (۱) د څناور دوه پښې سره تړل-د دوه پښو نه تړلے- (۲) د هغې څناور حالت چې د دووۀ پښو نه تړلے شوے وي- (۳) هغه څيز چې د څناور پښې پرې تړلے شي-ښکېل-

**ـــــ په کښې اچول**:- (۱) د څاروي (يا بل کوم څناور) پښې په شکېل سره تړل (۲) پـه کـوم روان کـار کښـې اړيکـه اچـول-بنـديز اچـول-خنـډ اچـول ښکېلول-

**ـــــ کول**:- (۱) د دوارو پښو نه تړل- (څناور) ښکېلل- (۲) په قابو کښې راوستل

**ـــــ کېدل**:- (۱) د دوارو پښو نه تړلے کېدل- (د څناور څاروي وغېره)-
(۲) په قابو کښې راتلل-

**شکېل** :- (ش+کې+ل) (ار-ص-مذ ، مو-ه) (۱) ښۀ شکل واله-خوش شکله-ښائسته-ښکلے- (۲) د نارينه ؤ زنانه ؤ په نومونو کښې راځي-

**شکېلل** :- (ش+کې+ل+ل) (ق-مص) (۱) په لوبه کښې دانه داسې غورځول چې نبغه ودرېږي- (۲) د گټې بېلات د پاره د گوتو خاص حرکت-

**شکېللے** :- (ش+کې+ل+لے) (ق-اس-مف) (د جوارۍ دانه وغېره) غورځولے شوے

**شکېلندر** :- (ش+کې+لَ+ن+دَ+ر) (ق-اس-مذ ، ج-ونه) (د جوارۍ) لوبه دانه لوے سپينتې-

**شکېلول** :- (ش+کې+ل+ؤ+ل) (مص مت) (۱) د څاروي (يا بل کوم څناور) د دووۀ پښو نه تړل-شکېل کول- (۲) مجازاً په قابو کښې راوستل-ښکېلول-

**شکېلے** :- (ش+کې+لے) (اس-مذ ، ج-لي) شپېلے-هغه اله چې دووۀ شونډو نه را ايستے شي-

**شکېلېدل** :- (ش+کې+لې+د+ل) (مص) (۱) د څاروي (يا د بل کوم څناور) د دوارو پښو نه تړلے کېدل- (۲) په قابو کښې راتلل-په څۀ معامله يا مصيبت کښې راگيرېدل-

**شکيه** :- (شَ+کي+يَ) (ع-اس-مو) (۱) شکي-د شک سره متعلق-هغه خبره وغېره چې په کښې موجود وي-مشکوک-شک واله- (۲) گريمر (قواعد) کښې هغه فعل چې د کېدلو او نه کېدلو يا واقع کېدلو او نه واقع کېدلو په حقله ئې يقين نۀ وي-ماضي شکيه-ماضي شکي-

**شگ** :- (ش+گ) د شگه مخفف دے-نورو الفاظو سره د سابقې په طور راځي او د شگې معنٰی ورکوي-

**ـــــ گړې**:- د پخوانۍ زمانې د وخت معلومولو يوه طريقه چې په لوښي کښې به ئې نرۍ شگې واچولې هغه به د لوښي د وېخ د نرې سورې نه ورو ورو په ښکته توئيدې-چې لوښې بدخالي شو-نو د يوې گينټې يا د پهر د تېرېدو پته به ولگېده-

**ـــــ ماهي**:- (ما+هي)

**ـــــ مهے**:- (مَ+هے) (اس-مذ) يو قسم څناور دے چې مخ ئې د څرمبنکۍ په شان تې وي او نور وجود ئې د کب (مهي) په شان وي-په سگو وروکے مونډے شي په دارو کښې پکارولے شي-په عربۍ کښې ورته "سقنقور" وائي-

**شگاره** :- (ش+ن+گا+رَ) (اس-مو ، ج-رې) (۱) حامله ښځه ، اميدواره ښځه- (۲) حامله څناور- (۳) متيزه ښځه- (چې د مور او پلار د اجازت نه بغېر اشنا سره وتښتي)-شگاړه-

**شگاف** :- (ش+گا+ف) (اس-مذ ، ج-ونه) چاود-چاوند-وت-درز-

**ـــــ شگاف کېدل**:- (۱) چاود کېدل-ځاے په ځاے چاودلے کېدل- (۲) (مجازاً) ډېر ځايه زخمي کېدل-

چـې د ژبـې لاړ يـوه د زړۀ ئې بله

په چاره ئې شَه ځېگر شگاف شگاف (خوشحال)

**ـــــ شگال**:- (شَ+گا+ل) (ف-اس-مذ ، ج-ان) شغال-گيدړ-

**شگرف** :- (ش/شَ+گَ+ر+ف) (ف-صف مذ ، مو-ه) (۱) ښه-نفيس- (۲) عجيبه- (۳) ښائسته-ښکلے- (۴) نېک-صالح-

**شگگنے** :- (شَ+گَ+ر+گ+نے) (ق-اِس-مذ-ج-نې) د مُچو گگ-

**شگرۍ** (۱) :- (شَ+گَ+ر+ۍ)

**شگرے** :- (شِ+گ+رے) (اس- (۱) مو ، (۲) نه) (۱) هغه اله چې خاورين لوښي پرې جوړولے شي- (۲) هغه نلۍ چې (پخوانۍ قسم يو) ټوپک کښې به پرې دارو ډکولے شول-

**شگفتگي** :- (ش+گُ+ف+تَ+گي) (ف-اس-مو) (۱) غوړېدنه-د گل سپړدے کېدنه- (۲) د بوټي-فصل وغېره ښه ښېرازه کېدنه-ښۀ تر و تازه کېدنه- (۳) خوشحالي-د زړۀ پرانستے کېدنه-د مخ غوړېدنه- (د خوشحالۍ نه)-

شـگوفے شـگـفتگي پـه شبنم راوړه

که مې ستړگې په ژړا کښې اماس ونيو (حميد)

**شگفته** :- (شِ+گُ+ف+تِ) (ف-صف) (۱) غوړېدلے-سپړدے- (گل وغېره)

(۲) خوشحاله - روڼ تندي واله - خنده کوړے - (۳) د مسلمانانو په نومونو کښې هم استعمالیږي -

**ـــــ پیشاني**:- (صف) د تندي روڼ والے - غوړېدلے تندے - روڼ تندے -

**ـــــ خاطر**:- (خا+ط+ر) (ف تر - صف - مذ ، ج ، مو - ٥) چې زړهٔ ئې غوړېدلے وي - د پرانستي او سپړدي زړهٔ واله - روڼ تندي واله - خوشحاله -

**ـــــ دل**:- (د+ل) (و------ شگفته خاطر)

**ـــــ روئې**:- روڼ مخے - خوش مزاجه -

لکه گل شگفته روئې تازه په باغ کښې
همېشه د بښو بلبلو پرې بلغاک (خوشحال)

**ـــــ طبع**:- طَ+بَ+ع) (و------ شگفته مجزاج)

**ـــــ مزاج**:- (مِ+زا+ج) (ف تر - صف ، مذ ، ج - مو - ٥) هغه چې طبیعت او عادت ئې ډېر ښهٔ وي - هر وخت ئې تندے روڼ وي - خوش ارواحه -

**ـــــ کول**:- غوړول - (گلونه وغېره) سپړدل - (گلونه وغېره) سپړدل -

**ـــــ کېدل**:- (۱) غوړېدل - د گلونو سپړدے کېدل -

چې اول ئې خار زرغون شي په پهلو کښې
غنچه هله شگفته شي په گلزار (رحمان بابا)

(۲) تر و تازه - (۳) خوشحاله کېدل - په طبع کېدل -

سرهٔ لاله په هغه مزکه شگفته شي
چې خوبي دې باندې ووري له رخساره (خوشحال)

**شگلن** :- (ش+گ+ل+ن) (صف - مذ ، مو - ٥) (۱) شگېز - شگو واله - (۲) هغه زمکه یا پټے وغېره چې په خاوره کښې ئې شگه گډه وي - شگوړه - (۳) هر هغه څیز چې په کښې شگه گډه وي -

**شگلنه** :- (ش+گ+ل+نَ) (ق - اس - مو ، ج - نې) (۱) د بني ادم مله - لنډه - (۲) د شگلن تانیث -

**شگلوړ** :- (شُ+گ+لو+ړ) [اس - مذ] (و------ شگلوړه)

**شگلوړه** :- (ش+گ+لو+ړَ) (اس - مو ، ج - رې) هغه زمکه چې په خاوره کښې ئې شگه ډېره زیاته وي - رېگستاني -

**شگلونې** :- (ش+گ+لو+نې) (اس - مذ ، ج - نې) د بني ادم مله - لنډه - چاربند - شگلنه -

**شگموښے** :- (شُ+گ+مُو+ښے) (اس - مذ ، ج - ښي) رېگ مال - هغه کاغذ وغېره چې په یو طرف ئې شگه (یا د اوسپنې بُوره) لگېدلې وي - د لوگي د سامان یا د اوسپنې د څیزونو د هوارولو د پاره پکارېږي -

**شگن** :- (ش+گ+ن) (صف ، مذ ، مو - ٥) پال - فال - شگون - [دا اصلاً هندي مرکب لفظ دے شو (نېک) او گُن (=اثر)]

**ـــــ اخیستل**:- په پال نیول - پال اخیستل - د څهٔ کار په حقله د کوم وړاندې راتلونکي څیز نه د ښهٔ او بد پال اخیستل -

**شگو** :- (ش+گو) د "شگې" (جمع) اضافي یا مجروري حالت دے -

**په ـــــ متیازې کول**:- داسې کار کول چې فائده ئې هیڅ نهٔ وي - داسې سرې سره ښېگړه کول چې هغه ئې د نیکۍ منه نه کوي - کم عقل سره نیکي کول په شگو کښې متیازې کول دي (متل) -

**د ـــــ بند**:- (بَ+ن+د) هغه بند چې د کاڼو خټو وغېره په ځاے د شگو نه جوړ کړے شي - مجازاً - کچه بند - ناپائیدار یا بوده کار - بوده بچاو

**ـــــ بند تړل (سېلاب ته)** :- د سېلاب د اوبو په مخکښې د شگو ډېرے جوړول - ظاهره ده چې شگې سېلاب ته نهٔ ټینگېږي - ځکه د څهٔ کار د پاره بوده بې فائدې انتظام کول -

**ـــــ د پړے/ رسۍ**:- ناشونے کار - ناممکنه کار - (د شگو نه پړے یا رسۍ نه غښتلے کېږي -

چې ستا زهد و پرهېز ته لېچې غړي
هغه غړي په معنٰی د شگو پړي (حمید)

**د ـــــ پړي نه غښتلے کېږي**:-

**د ـــــ رسۍ نه شي غښتے**:- کنایه - دا کار د کېدو نهٔ دے - دا ناشونے کار دے -

**د ـــــ حرامي**:- مجازاً ډېر لوے وران کارے - خراب کارونه کوونکے - ډېر مفسد -

**د ـــــ شېطان**:- (د=شې+طا+ن) لوے وران کارے - ډېره زیاته شېطاني او وران کاري کوونکے - ډېر شریر - مفسد -

**د ـــــ کمر**:- د شگو دېوال -

دم قدم لکه کمر د شگو رژي
د نابود عمر په بود باندې مه ویاړه (حمید)

**د ـــــ مزل**:- (مَ+زَ+ل) د رېگستان مزل - هغه مزل چې نهٔ خلاصېږي - نهٔ ختمېدونکے کار - اوږد کار چې په ختمېدو نهٔ راځي -

**شگوفه** :- (ش+گُو+فَ) (ف - مو ، ج - فې) (۱) غوټۍ - د گل غوټۍ - کلۍ - (۲) عجیبه خبره - د ځان نه جوړه کړې خبره -

**ـــــ پرېښول**:- یو نوې خبره خورول - د ځان نه جوړه کړې (عجیبه خبره) خورول -

**ـــــ غوړېدل**:- د غوټۍ نه گل جوړېدل - غوټۍ سپړدے کېدل -

**شگو کور** :- (شَ+گو+کو+ر) (اس مع) د پښتنو قبیله ده چې د امبراخېلو وړه څانگه ده او امبراخېل ، سنځرحل خېل ، کمال خېل ، صاحب جان خېل ، اکا خېل افریدي دي -

**شگون** :- (شُ+گُو+ن) (------ شگن)

**شگه** :- (شُ+گَ) (اس - مو ، ج - شگې) ډېرې نرۍ نرۍ سنگریزې - په سیندونو کښې چې کاڼي مات راماټ شي او نرۍ نرۍ ټوټې ترې جوړې شي نو سنگریزې بللې شي او چې دا نورې هم نرۍ شي نو شگه بلله شي - (په فارسۍ کښې ورته رېگ وائي) -

**ـــــ غټه**:- (غَ+ټَ) (اس مو ، ج - غې شگې) هغه شگه چې دانې ئې غټې غټې وي -

**ـــــ غله**:- (غ+لَ) په دریاب یا سمندر کښې د شگو ډېرے -

**ـــــ مېده**:- (مې+دَ) (اس - مو ، ج مې) هغه شگه چې ډېره نرۍ وي - یعني دانې ئې ډېرې نرۍ نرۍ وي -

**شگي گل** :- (شَ+گي+گُ+ل) (اس - مذ) (۱) ابرک - ابرک کاڼے -

**شگے /شگې** :- (ش+گے) (۱) د شگه جمع ده - (۲) د "شگه" اضافي یا مجروري حالت دے

**ـــــ کېدل (سترگې)**:- په سترگو کښې خوب راتلل - د خوب زور کېدل - خوب ورتلل -

**تشې ـــــ چڼول**:- بې فائدې کار کول - عبث ځان کړول - (د سیند شگې د سرو زرو د زرو جمع کولو د پاره چڼولې شي) نو هغه شگې چڼول چې د زرو ذرې نهٔ لري عبث او بې فائدې کار دے) -

**ـــــ سرهٔ زر لرونکي**:- (س+ر+زَ+ر) (و----- طله لرونکي شگې)

**طلا لرونکي** :- (ط+لا+لَ+رُو+ن+کي) (فپ تر - اس جم) هغه شگے چې په کښې د سرو زرو ذرې هم موجود وي - خلق دغه شگې په خاص طریقه چڼوي - سرهٔ زر ترې بېلوي

**شگیرنې** :- (ش+گي+ر+نَے) (ق - اس - مذ ، ج - نې) د مچوگگ - شگوگنے -

**شگېز** :- (ش+گي+ز) (صف - مذ ، مو - ٥) شگلن - شگن - شگلوړے -

**شل** :- (ش+ل) (اس عدد ، ج - شلگونه /شگې) دوه ځله لس - (فارسي :بست)

**ـــــ ایکیزه**:- (اې+کي+زَ) (اس - مو ، ج زې) یوه پخوانۍ وړه سکه -

**ـــــ به نهٔ کړے**:- پوره به نهٔ کړې - سر ته به ونهٔ رسې - کله کله "بې زمانه" یا

بغیر زما نه هم ورسره وئیلے شي - دا کار به ته بې زما نه شل نهٔ کړې -

ـــــ **پاپړ**:- شل پاپړ که لاندې باندې کښېښودے شي هم ئې زور نهٔ وي - ګنې کمزوري سړي - شل پاپړ د یو لوړ! (متل) -

ـــــ **پلارے**:- (پ+لا+رَے) (پ تر - اس - ج - دي) هغه کس چې شل پلاره لري چې اصل نسل ئې معلوم نهٔ وي - حرامي -

ـــــ **پولي**:- (پُو+لَ+ي) (اس - مو) یوه سکه چې د شلو پَولیو برابر وه -

ـــــ **ځله**:- (پ+تر+تف) یعني په شل واره خو به ستا وینا ومنم - په دواړو سترګو به ستا کار وکړم -

ـــــ **دانه**:- (دا+نَ) د مرواریدو یو امېل چې په مرۍ کښې آچولے شي - امېل -

ـــــ **کاره پرېښودل**:- (محاوره ده) د یو ضروري کار د پاره د نورو شلو کارونو نه لاس اخستل -

ـــــ **کول**:- پوره کول - سر ته رسول -

ـــــ **کېدل**:- پوره کېدل - سر ته رسېدل - خواهش پوره کېدل - (وائي چې یو سړي له په خوب کښې چا نولس روپۍ ورکړې - دهٔ ورته منتونه کول چې یوه بله هم راکړه چې شل شي - په دې کښې دے راوېښ شو نو هغه نولس هم نهٔ وې - هغه بیا سترګې پټې کړې او وې وئیل راکه هم هغه نولس راکړه - دې نه محاوري جوړې شوې) -

ـــــ **ګونه**:- (ګو+نَ) (اس - عدد - ج) ډېرې شلې - ډېر ځله شل - مجازاً ډېر زیات شمېر کښې ګڼل شمېره -

ـــــ **لخه خوړول**:- (په یوه څپېړه) په یو غلط کار شل خفه کول - متل دے - په یوه څپېړه شل مخه خوړېږي -

ـــــ **مشر**:- (م+ش+ر) (ق - پ تر - مذ ، ج - ان) په افغانستان کښې یوه فوځي عهده د سلو کسانو مشر - بست باشي -

ـــــ **نه شل نیمې**:- (محاوره) یو کار چې په شلو روپو نهٔ کېږي نو په شل نیمو دې وکړے شي - په شلو او شل نیمو کښې دومره توپیر نشته -

**دنولسونه ـــــ نهٔ شوه**:- پوره نهٔ شوه - سر ته ونهٔ رسېده - (د دنیا یا د دنیا د معاملو په حقله وئیلے شي) -

**راګه پنجه چې ـــــ شي**:- (و ـــــ لاس راواچوه چې شل شي)

**لاس راواچوه چې ـــــ شي**:- لاس زما په لاس راواچوه چې خبره پخه شي - د خوشحالۍ یا د وعدې د پخولو په موقع هلکان زلمي یو بل ته وائي -

**شل** (۱) :- (شَ+ل) (اس - مذ ، ج - ونه) د نېزې یو قسم - بلم - د نېزې سر یا څوکه -

ـــــ **ګے**:- (ګے) (اس - مذ ، ج - ګي) وړوکے شل - وړوکې نېزه - د نېزې یا د عصا تېرۀ سر -

**شل** (۲) :- (شَ+ل) (صف - مذ ، مو - ه) هغه سړے یا ځناور چې لاس و پښې ئې کار نهٔ کوي -

همره پښې ئې وې چې ستا تر کوره راغے
نور سکندر له کوره مه خوځوه شل دے (سکندر)

ـــــ **شول**:- (=شو+ل) (پ تر - صف مذ ، مو - شله شوله) بېخي شل - بالکل شل - بالکل بې کاره -

ـــــ **ګوډ**:- (=ګ+ُډ) (صف مذ ، مو - شله ګوډه) (۱) هغه کس چې هم شل وي او هم ګډ - یعني چې لاسونه او پښې ئې کار نهٔ کوي - مجازاً بېکاره سړے - هغه سړے چې څهٔ کار نهٔ شي کولے - (۲) د نفي په صورت کښې دروغ سړي په حقله وئیلے شي - لکه زه څهٔ شل ګوډ خو نهٔ یم چې سوال به کوم یا هغه خو څهٔ شله ګوډه نهٔ ده یعني څهٔ عیب په کښې نهٔ شته -

ـــــ **وشوټ**:- (لو+شُو+ټ) (ق - پ تر - صف - مذ ، مو - ه) هغه کس چې لاسونه او پښې ئې بې کاره شوي وي -

**شل** (۱) :- (شَ+ل) (ق - اس - مذ ، ج - ونه) پوړۍ - زینه -

**شل** (۲) :- (شَ+ل) [ق - اس - مذ] وبروسے (غزني) هغه چیلے کوم چې د مړي خپل خپلوان د مړینې په ورځ د مړي کور ته لېږي -

ګویا دومره عشق د نل په دمن نهٔ وهٔ
چې خواهش لري مُلا د شل خوړوته (هجري)

**شله**:- (شَ+لَ) د "شل" تانیث دے -

ـــــ **ګیدړې**:- (ګي+د+ړَ) (پ تر - اس - مو ، ج - ړې) هغه ګیدړه چې شله وي او د ځایه خوځېدے نهٔ شي - مجازاً بېکاره - سست او بې همته سړے چې کار روز وغېره نهٔ کوي -

ـــــ **مږزه**:- (مَ+ږ+زَ) (پ تر - مو ، ج - زې) هغه مږزه چې شله وي او له ځایه نهٔ خوځي - مجازاً بېکاره او سست سړے -

**شلاټه**:- (شَ+لا+ټَ) (ق - اس - مو ، ج - ټې) د لوخي وبخ - بیم -

**شلاق**:- (ش+لا+ق) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) د ټوپک وغېره ډز -

چې خدائے پوهه کړل د بنو په ځل پوه شو
چې پوهه نهٔ شو نهٔ پوهېږي په شلاق (رحمان)

**شلامیر**:- (ش+لا+مي+ر) (ق - اس - مذ) د پټ پټانۍ په شان یوه لوبه -

**شلانډه / سلانډه**:- (ش+لا+ن+ډَ) (اس - مو ، ج - ړې) (۱) سمسره - څمڅره - [په شلانډه او سمره یا څمڅره کښې فرق دے ، سمسره حلاله نهٔ ده ]

هغه باز تر موش ګیر که لا بتر دے
شلانډه خو حلاله ده خو تارا ئې مرداره (خوشحال)

شلانډه خو حلاله ده خو تارا ئې مرداره وه - (متل) (۲) چیندخه - چیندخه - غټه چونګښه -

**شلاونه**:- (ش+لا+و+ن+د) (اس - مذ) د شریکې تاوان یا جرمانه - د تاوان د رقم تقسیم (د جرمانې هغه رقم چې په قبیله یا خاندان وغېره کښېښودے شي او بیا هغه د قبیلې یا د خاندان په وګړو کښېښودے شي) - انداز بسینه -

**شلاوڼ**:- (ش+لا+ؤ+ن+ڼ) (و ـــــ شلاونډ)

**شلاوه**:- (ش+لا+وَ) (اس - مو - ج - وې) د اوبو په وېخ کښې کېدونکے یو قسم ګیاه

**شلایین**:- (شَ+لا+یي+ن) (ت - صف) شوخ - تن اسانه - ارام طلبه - عاشق -

د دنیا په کار قابل هغه بالا شي
چې بېرون له حمیت څوک شلایین شو (سعید)

**شلبر**:- (ش+لَ+ب+ر) (اس - صف - مذ) ستغه کپړه - شغ ټوکے - هغه کپړه چې بې ترتیبه او دلے شوې وي - شډله -

**شلت**:- (ش+ل+ت) (صف - مذ ، مو - ه) سست - کاهل - سست پست - ناراسته - بې کاره - شلټ -

**شلتالو**:- (شَ+ل+تا+لوُ) (اس - مذ ، ج - لان) مشهوره مېوه - شفتالو -

**شلتول**:- (ش+لَ+تَ+ؤ+ل) (مص) سستونه - پر کالاکول - پر کالول -

**شلتونه**:- (ش+لَ+تَ+ؤ+نَ) (حمص) سستونه - پرکالونه -

**شلتوونکے**:- (ش+لَ+تَ+وُو+ن+کے) (اس - فا ، ج - کي) سستوونکے - پرکاله وونکے

**شلته**:- (ش+ل+تَ) (اس - مؤ) غټه دانه -

**شلتے**:- (ش+لَ+تے) (صف مو ، ج) د اوربشو د صفت کلمه ده - هغه اوربشې چې لاټکو ولې شوې نهٔ وي او پوستکے ترې بېل شوے نهٔ وي - نا صفا اوربشې -

ـــــ **اوربشي خوړل**:- نا صفا کړې اوربشې خوړل - چې د ډېرې عاجزۍ او غربيۍ علامت دے - شلتے اوربشې خوري - کنایه: ډېر خوار او غریب دے -

**شلتپدل**:- (ش+لَ+تې+د+ل) (مص) سستېدل - پرکالېدل -

**شلتبدنه** :-(ش+لَ+تې+د+نَ) (حمص) سستېدنه - پر کالېدنه -

**شلتېدونکی** :- (ش+لَ+تې+دُو+ن+کی) (اس - مف - ج - کي) سستېدونکی - پر کاله کېدونکی -

**شلتې** :- (ش+ل+تې) (صف مذ ، مو - ه) ناراسته - سست پست - کاهل -

که دیدن غواړې د اشنا پرېږده سپرمی د نغري
ولې لـه ځایه چرګېدے نهٔ شي ناراسته شلتېه (حسین)

**شلجم** :- (ش+ل+ج+م) (ف - اس - جم) شلغم - ټېپر - مشهوره ترکاري -

**شلخته** :- (ش/ش+ل+خ+تَ) (ق - اس - مو - ج - تې) بې حیا - بې شرمه ښځه -

**شلخورکه** :- (ش+ل+خو+ر+کَ) (اس - مو - ج - کې) شلاندہ - سمسره - خمڅره -

**شلخې** :- (ش+ل+خې) (اس - مذ ، ج - خي) د لویو لویو پاڼو واله ځنګلي بوټے - چې په پټو کښې ډېر کېږي - د ساګ په طور پخولے شي - (ترک شک) -

**شلخے** :- (ش+ل+خے) (اس - مذ ، ج - خي) د ټوپک یو پخوانے قسم - شلخے ټوپک - دیسي ټوپک -

**شلغت** :- (ش+ل+غَ+ت)

**شلغټ** :- (ش+ل+غَ+ټ) (صف - مذ ، ج - مو - ه) بې ډوله - بې تناسبه او بې نمکه څیز -

**شلغشے** :- (ش+ل+غ+شے) (و---- شرغشے)

**شلغم** :- (ش+ل+غَ+م) (اس - جم) ټېپر - مشهوره ترکاري - شلجم -

**شلق** :- (ش+ل+ق) (ف ، اس صوت) (۱) د ټوپکو د باړ د چلېدو اواز - ډزار - په یو ګزار د ډزو اواز - شلک - (۲) په چابک یا په هنټر وغېره د وهلو اواز - شرکا - شرکار -

**ـــ خوړل**:- د ټوپک یا د تماچې وغېره د ګولۍ ګزار خوړل - ګزار خوړل - ضرب خوړل -

روغ به هاله د درد من په حال خبر شي
چې پـه زړهٔ بـانـدې رسا وخوري شلق (خوشحال)

**شلک** :- (ش+ل+ک) (اس - مذ ، ج - ونه) (۱) پرلـه پسې د ټوپکو (یـا د توپـو) فایرونه شلق - (۲) فوځي سلامي - شلق - ناصفا اوربشې - (ظفر) -

**ـــ کول**:- د ټوپکو ګزار کول باړ چلول -

**ـــ ورکول**:- (۱) د ټوپکو باړ چلول - (۲) د ټوپکو (یا د توپو) په چلولو سلامي ورکول -

**شلکه** :- (ش+ل+کَ) (ق - اس ، مو - ج - کې) سستي - ناراستي -

**شلکے** :- (ش+ل+کے) (اق - اس - مذ ، ج - کي) د دستار طرّه - د پټکي شمله -

**شلکي** :- (ش+ل+کي) (اس - صف) شلک سره تعلق لرونکے - ډزو یا بړ سره تعلق لرونکے -

**ـــ کارتوس**:- (کا+ر+تو+س) (پ تر - مذ) د ډزو د پاره د چلولو کارتوس - د ډزو کارتوس -

**شلګ** :- (ش+ل+ګ) (صف - مذ ، مو - ه) (۱) شاړ - شډل - شاړ اُودلے شوے -

چې طالع د بې ننګۍ شال ئې په سر کا
تـر هـغه ښځهٔ دے قـانع پـه شړې شلګه (یونس)

(۲) ستغ - سخت -

په برسېره پوست ئې په مېنځ کښې لیس ئې
عـجیـبه پـه خـولهٔ حـلیم پـه زړهٔ شـلګه (ادم)

**شلګره** :- (ش+ل+ګ+ر) (ق اس - مو - ج - رې) د باران هفته -

**شلګره** :- (ش+ل+ګ+رَ) (و---- شولګره)

**شلګونو** :- (ش+ل+ګو+نو) د "شلګونو" اضافي یا مجروري حالت -

**پـه ـــ**:- (پَ) (اس عـدد) ډېر ځله د شلو پـه حساب - مجازاً ډېـر زیـات شمېر کښې - ډېر ګڼ شمېر -

**شلګونه** :- (ش+ل+ګو+نَ) (اس - عـدد) پـه شلګونو - ډېـر ځله شـل - مجازاً ډېـر زیات تعداد - ګڼ شمېر - (و---- د "شل" تر لاندې) -

**شلګه** :- (ش+ل+ګَ) (اس - مو ، ج - شلګې) لشه - د غنمو وړې ځرے ازغے -

**شلګی** :- (ش+ل+ګ+ی) (اس - مو) طاخ - طاخګے -

**شلګے** :- (ش/ش+ل+ګے) (ا صف - مذ ، مو - ه) هغه اوربشې چې ټکولې شوې او صفا شوې نهٔ وي - (ق)

**شلګے** :- (ش+ل+ګے) (ق - اس - مذ ، ج - ګي) د وړوکي نېزې څوکه -

**شلفګے** :- (ش+ل+ګے) (اس - مذ ، ج - ګي) ډیوټ - چراغ دان -

**شللو** :- (ش+ل+لو) (ق - اس - مؤ) هغه ښوروا چې اوبهٔ په کښې ډېرې وي او غوړ کم -

**شلم** :- (ش+ل+م) (صف مذ ، مو - ه) (۱) سست پست - شرم - (۲) هغه بار چې سست پست تړلے شوے وي -

هېڅ طاقت ئې د وړو نهٔ لرم دلبـره
ستا غمونو د عشق بار کړ شلم زما (حسین)

**خېټي** :- (خَې+ټي) (صف) هغه ځناور چې خېټه ئې زمکې طرف ته زوړونده وي - خاپوړن -

**ـــ کول**:- (و---- شلمول)

**ـــ کېدل**:- (و---- شلمېدل)

**شلم** :- (ش+ل+م) (اس عدد ، مذ ، مو - ه) د شمېر په درجه کښې چې د نولسو نه وروستو راځي - (فارسي: بستم)-

**شلمان** :- (ش+ل+ما+ن) (اس - مع) په پښتنونخواه کښې د مشهورې علاقې نوم -

د شلمان غـرونه پـه دا کله خبر دي
پـه شلمان کښې چې زرګونه شول ډېر (خوشحال)

**شلماني** :- (ش+ل+ما+ني) (اس - مع) د پښتنو یوه قبیله چې د مهمندو همسایه دي - د دوي پخوانے وطن شلمان نومېږي خو وروستو دا خلق د خېبر قطب طرف ته بیا هشنغر ته وخوځېدل او وروستو سوات طرفته لاړل او د مهمندو د همسایهٔ په طور اوسي -

**شلماني مهمند** :- (اس - مع) دا اصلاً د شا منصور خېلو ، مسعود کور او د حلیم زو مهمندو ښاخونه دي -

**شلمدنه** :- (ش+ل+م+د+نَ) (ق - اس - مو) تعلب مصرعي - یو قسم دارو -

**شلمشر** :- (ش+ل+م+ش+ر) (و---- د "شل" تر لاندې)

**شلمول** :- (ش+ل+م+ؤ+ل) (مص مت) (۱) شلم کول - شړمول - (۲) (ق) بار سست پست تړل -

**شلمولے** :- (ش+ل+م+ؤ+لے) (اس مف ، ج - لي) (۱) سست پست کړي - شړم کړے - (۲) سست پست تړلے شوے -

**شلمونګ** :-(ش+ل+م+و+ن+ګ) [ق - حمص] (و---- شلمونه)

**شلمونه** :- (ش+ل+م+ؤ+نَ) (حمص) شلم کوونه - سست پست کوونه - شړم کوونه

**شلمو‌ونکے** :- (ش+ل+م+وُو+ن+کے) (اس - فا - مذ ، ج - کي) سست پست کوونکے - شړموونکے -

**شلمه** :- (ش+ل+مَ) (اس عدد) د شلم تانیث -

**ـــ صدي**:- (ص+دي)

**ـــ پېړۍ**:- (پې+ړ+ی) (اس - مع) د عیسوي یا میلادي تقویم (کیلنډر) په حساب شلمه صدي - روانه پېړۍ - مجازاً اخري زمانه - نوې زمانه -

**شلمې** :- (ش+ل+مې) د "شلمه" جمع -

**ـــ سترګې**:- سستې او ځوړندې سترګې - کوزې ټیټې سترګې -

**شلمۍ** :- (ش+ل+م+ئې) (اس - مع) د رحمي خېلو څانګه ده او رحمي خېل کدي

کور ، حليم زئ مهمند دي.

**شلمېدل** :- (ش+ل+مې+د+ل) (مص) (۱) سست پست کېدل - شرم کېدل (۲) (دباد) سست پست تړلے کېدل - (ق)

**شلمېدنه** :- (ش+ل+مې+د+نَ) (حمص) شلم کېدنه - سست پست کېدنه - شرم کېدنه.

**شلمېدونکے** :- (ش+ل+مې+دُو+ن+کَے) (اس فا ، ج - کي) (۱) سست پست کېدونکے شرم کېدونکے - (۲) سست پست تړلے کېدونکے - (باد)

**شلنډ** :- (ش+ل+ن+ډ) (صف - مذ ، مو - ه) غټ پټ - څرب - لويې تنې واله -

**ـــــ توب** :- (تو+ب) (اس - مذ) غټوالے - غټ پټوالے - تنومندي - لوے تني -

**ـــــ والے** :- (وا+لے) (اس - مذ) غټ والے - څورب والے - تنومندي - لوے تنې.

**شلنډول** :- (ش+لَ+ن+ډَ+ؤ+ل) (مص مت) غټول - په تنه لويول - څربول - غوښنه کول -

**شلنډونګ** :- (ش+لَ+ن+ډَ+ؤ+ن+ګ) (حمص) غټوونه - څربوونه - په تنه لويوونه.

**شلنډونه** :- (ش+لَ+ن+ډَ+ؤ+نَ) (حمص) غټونه - څربوونه - په تنه لويوونه.

**شلنډوونکے** :- (ش+لَ+ن+ډَ+وُو+ن+کے) (اس - فا - ج - کي) غټوونکے - تنومند کوونکے - څربوونکے -

**شلنډه** :- (ش+لَ+ن+ډَ) (و----شلا نډه)

**شلنډېدل** :- (ش+ل+ن+ډې+د+ل) (مص) غټېدل - څربېدل - غوښن کېدل - تنو مند کېدل -

**شلنډېنګ** :- (ش+لَ+ن+ډې+دَ+ن+ګ) [ق - حمص] (و----- شلنډېدنه)

**شلنډېدنه** :- (ش+لَ+ن+ډې+دُو+ن+کَے) (اس - فا - ج - کي) غټېدونکے - څربېدونکے په تنه لوئېدونکے -

**شلنګ** :- (ش+ل+ن+ګ) (انګ - اس - ج - ونه) يوه انګريزي سکّه - د سرو زرو په يو پونډ کښې شل شلنګونه وي -

**شلوار** :- (شَ+ل+وا+ر) (اس - مذ ، ج - ونه) پرتوګ - درونډ پرتوګ - دا اصلاً د شَل (پتون) او "واو" (د نسبت کلمه) نه جوړ شوے دے -

**ـــــ سور کول** :- پرتوګ سور کول - کنايه زوے يا لور راوړل -

په سرائې کښې ښځه سور کاندي شلوار (خوشحال)

**شلول** :- (ش+لَ+ؤ+ل) (مص مت) (۱) څيري کول - کپړه ټوکړے يا کاغذ وغېره ټوټې کول - (۲) قطع کول - پرې کول - غوڅول -

که له دله ئې شلووم ، شلووله نۀ شي
د دلبرو ياري څو ده دل اوبزه (خوشحال)

**ـــــ تعلق يا تعلقات** :- (تَ+عَ+ل+لُ+ق------ يا تَ+عَ+ل+لُ+قا+ت) رابطه يا روابط ختمول -

**جال ـــــ** :- (جا+ل) په جال کښې سُورے کول -

**جامې ـــــ دچا** :- چاسره خپرې لګول - جنګ جګړه يا پرزول کول چې جامې په کښې وشلېږي -

**رابط ـــــ** :- (را+بِ+طَ)

**روابط ـــــ** :- (رَ+وا+بِ+ط) (و------ تعلق شلول)

**رشته ـــــ** :- (ر+ش+تَ) تعلق ختمول - دوستي خپلولي ختمول -

**زنځيرونه ـــــ** :- (زَ+ن+زي+رو+نَ) (۱) مجازاً - له قېده ځان خلاصول - ځان ازادول (۲) مجازاً - څۀ څيز د حصول دپاره ډېر زور لګول - ډېر زيات مشتاق "بودل" -

**غاړه ـــــ** :- (غا+ړَ) (و------- مرى شلول)

**ګونه ـــــ** :- (کُ+و+نَ) (۱) ډېر زيات زور لګول - خپل پوره قوت نه کار اخستل - لکه کونه ئې ورپسې وشلوله (۲) ډير زيات زور غوښتل - ډير زيات محنت خواري پکار بدل - لکه دا کارخو د سړي کونه شلوي!-

**مرى ـــــ** :- (مَ+رَ+ى) (۱) مجازاً - چغې وهل - ډېرې په زوره زوره خبرې کول (۲) بې خونده سندره وئيل -

**شلوم** :- (ش+لو+م) (اس - جم) د کوچو د ويلې کولو نه پس چې کوم بېکاره څيز لاندې پاتې شي - شړوم -

**شلومبانړ** :- (ش+لو+م+با+وَ+ن) (ق - اس - مذ ، ج - ونه) هغه لويه کڅوړه يا تيلۍ چې په کښې د ماستو نه پنير جوړولے شي -

**شلومبکه** :- (ش+لو+م+بَ+کَ) (ق - اس - مو ، ج - کې) د يو پلن بوټي نوم دے چې ډانډې نۀ لري او پاڼې ئې پرَې (غاښې) لري -

**شلومبه** :- (ش+لُو+م+بَ) (اس - مو ، ج - بې) (۱) شوملې - شلومبے - (۲) هغه بېکاره کڅيز چې د کوچو د ويلې کولو نه پس لاندې پاتې شي -

**شلومبې** :- (ش+لُو+م+بې) (اس - جم) شُوملې - شلومبه - سلومبې - شنوبې -

چې سړې شلومبې ئې څښکم په وخت د اوړې
بادشاهي د اورنګ زما غرکه (خوشحال)

**تشې ـــــ شاربل** :- عبث او بې فائدې کار کول - په داسې کار کښې ځان کړول چې څۀ فائده ترې نۀ حاصلېږي.

**شلونب** :- (ش+لو+م+ب) (و-----شلومبه)

**شلونبې** :- (ش+لُو+م+بې) (اس - جم) شوملې -

خپلې خپلې شلونبې ستائي
چې شلونبې پلورې ګجرے (خوشحال)

**شلونګ** :- (ش+لَ+وَ+ن+ګ) [ق - حمص] (و------ شلونه)

**شلونه** :- (ش+لَ+ؤ+نَ) (حمص) څېرې کوونه - قطع کوونه -

**شلووُن** :- (ش+ل+وُو+ن) [حمص] (و------ شلونه)

واړه ستا په حکم کېږي
ه ګنډون دے که شلوون (خوشحال)

**شلوونکے** :- (ش+لَ+وو+ن+کے) (اس فاع - ج - کي) څيرې کوونکے - قطع کوونکے - پرېکوونکے -

**شله** :- (شَ+لَ) (و----- شيلې)

**شله** :- (شَ+لَ) (اس - مو ، ج - شلې) ايشله - د ښځو يو قسم اتڼ -

**شله** :- (شَ+لَ) (اس - مو ، ج - شلې) د ګړ لم د ويلې کولو نه پس چې کوم غوړ جوړ شي هغې ته "شله" وائي او چې کوم غوړو څاروو د وازدې نه جوړ شي هغه "ډل" بللے شي -

**شُله** :- (ش+لَ) (اس - جم) شولې - يو قسم خوراک چې وريژې (وريجې) د غوښې په ښوروا کښې ښې نرمې کړي - (او ښه ډېره غوښه هم ورسره شامله کړي) اصلاً ترکي ټکے دے - شُلّه.

**شله منا** :- (شَ+ل+م+نا) (ق ، اس - مو) ښوئېدونکے کاڼے - ښو ياند کړے - هغه مهين کاڼے چې ماشومان پرې د بره نه ځان راښويه وي.

**شلى** :- (شَ+ل+ى) (اس - مو) (د شلې تانيث دے) هغه ښځه چې لاسونه او پښې ئې شلې او بې کاره وي -

**شلې** :- (شَ+لې) (اس عدد - ج) د شل جمع ده -

**اتلس ـــــ** :- (اَ + تَ+ ل + لَ + س) (اس عدد) اتلس ځله شل - شپېتۀ د پاسه درې سوه - ۳۶۰)

**اتۀ ـــــ** :- (اَ+ت) (اس عدد) اتۀ ځله شل - يو سل او شپېتۀ - (۱۶۰)

**اووۀ ـــــ** :- (او+ؤ) (اس عدد) اووۀ ځله شل - يو سل او څلوېښت - (۱۴۰)

**څلور ـــــ** :- (رت) سَ+لو+ر) (اس عدد) څلور ځله شل - اتيا - (۸۰)

**څلوارلس ـــــ** :- (ت) س+وا+ر+لَ+س) (اس عدد) څوارلس ځله شل - يعني شل کم درې سوه - (۲۸۰)

**درې ـــــ** :- (د+رې) (اس عدد) درې ځله شل - شپېتۀ - (۶۰)

**دولس ـــــ** :- (دو+لَ+س) (اس عدد) دوسل څله شل - یعني دوه سوه او څلوېښت - (۲۴۰)

**دیارلس ـــــ** :- (د+یا+ر+لَ+س) (اس عدد) دیارلس څله شل - یعني دوه سوه او شپېتهٔ - (۲۶۰)

**شپږ ـــــ** :-(ش+پَ+ږ) (اس عدد) شپږ څله شل - یو سل او شل - (۱۲۰)

**نولس ـــــ** :- (نُو+ل+لَ+س) (اس عدد) نولس (نونس) څله شل - یعني شل کم څلور سوه - (۳۸۰)

**نهٔ ـــــ** :-(نَ+هٔ) (اس عدد) نهٔ څله شل - شل کم دوه سوه - (۱۸۰)

**یو** (و) **لس ـــــ** :-(يَ+وو+لَ+س) (اس عدد) یوولس څله شل - یعني دوه سوه او شل - (۲۲۰)

**نیمې ـــــ** :- (نی+مې) (اس عدد) یعني نیم شل (لس) د پاسه دومره شلې - لکه: درې نیمې شلې (۷۰) څلور نیمې شلې (۹۰)

**شلې** :- (شَ+لې) (اس - مذ ، ج - شلي/شلیان) هغه کس چې لاس او پښې ئې شلې شوې وي چې لاس او پښې ئې بېکاره وي -

**شلي** :- (ش+لي) (ق ، اس - جم) دانې - د غلې دانې -

**شلیاپه** :- (شَ+ل+یا+پ) (ق - اس - مو ، ج - پې) نښه - د پرتوغانې د اچولو نښه -

**شلیته** :- (ش+لي+تَ) (اس - مو ، ج - تې) غټه دانه - دنبل -

**شلیته** :- (ش/ش+لي+تَ) (اس - مو ، ج - تې)(۱) بوجۍ - برغده بوجۍ - د مضبوطې کپړې بوجۍ یا لویه تبله (کڅوړه) -(۲) هغه جلۍ چې د مستۍ یا د برړېدلو په وخت د اوښ د خولې نه راووځي - (۳) همیانۍ -

**شلیته** :- (شَ+لي+تَ) (ق ، اس - مو ، ج - شلیتې) (۱) د ډوډۍ پس خورده - (۲) زوړ وړین ټُوکر - (۳) بدکاره - بدچلنه - فاحشه ښځه -

**شلېدل** :- (ش+لې+د+ل) (مص لا) (۱) څیرې کېدل - قطع کېدل - پرېکړې کېدل - ماتېدل - (۲) (طنزاً) په زوره خبرې کول -

**تعلق ـــــ** :- (تَ+عَ+ل+ق)

**تعلقات ـــــ** :- (لُ+ق) تعلق پاتې کېدل - تعلقات نهٔ پاتې کېدل - رابطه یا روابط ختمېدل

**رشته ـــــ** :- (ر+ش+تَ) تړون نه پاتې کېدل - خپلولي ختمېدل -

**سترګې ـــــ** :- (س+ت+ر+ګې) بې حیا کېدل - حیا نهٔ پاتې کېدل - بد لحاظه کېدل

**ګونه ـــــ** :- (ګُ+و+نَ) کار ته ځان نهٔ نیول - طنزاً وئیلې شي - لکه خوراک ته مړنې ئې او کار ته دې کُونه شلېږي -

**شلېدلې** :- (ش+لې+د+لَې) (اس - مف - ج - لي) څیرې شوې - پرېکړې شوې - قطع شوې -

**ـــــ پشلېدلې** :- (پ+ش+لې+د+لې) پشلېدلې تابع مهمل دے - د شلېدلې په معنٰی کښې زور او تاکید پیدا کوي - ډېر شلېدلې - ډېر څیرې شوې -

**ـــــ سترګې** :- (س+ت+ر+ګې) بې حیا سترګې مجازاً بې حیا سړے - بد لحاظه سړے -

**په ـــــ کټ کښې پرېوتل** :- ډېر زیات غمجن او فکر مند کول - (عموماً په قیصو کښې راځي - چې یو باچا یا وزیر وغېره ته څهٔ ګرانه مسئله وړېښه شي نو هغه کورته لاړ شي او شلېدلي کټ کښې پرېووځي - په دې حالت کښې هوښیاره لور ئې مسئلې سر ته اورسي) -

**شلېدنګ** :-(ش+لې+دَ+ن+ګ) [ق - حمص] (وـــــ شلېدنه)

**شلېدنه** :- (ش+لې+د+نَ) (حمص) څیرې کېدنه - پرې کړے کېدنه - قطع کېدنه - تعلق قطع کېدنه - لکه زما او د هغهٔ شلېدوونه نهٔ کېږي -

**شلېدونکے** :- (ش+لې+دُو+ن+کے) (اس - مف ، ج - کي) څیرې کېدونکے - قطع کېدونکے - پرېکېدونکے -

**شلېده** :- (ش+لې+د) [حمص] (وـــــ شلېدنه)

**شلیک** :- (ش+لي+ک) (وـــــ شلک)

**شلیکۍ** :- (شَ+لي+کَ+ی) (اس - مو) د افغانستان یوه پخوانۍ سکه چې د روپۍ دریمه برخهٔ ده - عباسۍ - ټنګه -

**شلیکے** :- (ش+لي+کَے) (ق ، اس - مذ ، ج کي) وچ کړے زرد الو - وچه کړې مندته کښته - خورمانه -

**شلیل** :- (شَ+لي+ل) (اس - مذ) د شلتالو یو قسم -

**شَلیل** :- (شَ+لِي+ل) (اس - مذ) یو قسم رېښمینه غټه کپړه چې برستنې او غټې جامې ترې جوړېږي - شنیل -

**شَلیل خېل** :- (شَ+لي+ل+خېل) (اس - مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د بدین زیو څانګه ده او بدین زئ ، برني شمن خېل محسود دي -

**شم** :- (ش+م) (لاحقه) د ماضي فعلونو د واحد متکلم د صیغې د جوړولو دپاره پکارېږي - لکه جوړشم - خفه شم وغېره -

**شم** :- (شَ+م) [اس - اس - مذ] شمع - موم باتۍ -

**شما** :- (شُ+ما) [ف] تاسو -

زهٔ به هېڅکله له عشقه نه وا نهٔ وړم
پندګویانو خپل پندو ساتۍ شما (خوشحال)

**شماتت** :- (شَ+ما+تَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) د چا په نقصان یا تاوان وغېره خوشحالېدنه - چا پورې خندا کوونه -

په دا هسې پاکیزه اوبو سلسالو
شماتت ئې د کشمیر په شالامار شي (خوشحال)

**شماخه** :- (شَ+ما+خَ) (اس - مو - ج - خې) (۱) یو قسم واښهٔ وي - (۲) (ق) یو قسم غله ده چې شولو سره پیدا کېږي - شمخه [وزیري : شمیخه] -

**شماخۍ** :- (ش+ما+خَ+ی) (ق ، اس - مو) د چایو د سر پېروے -

**شمارل** :- (ش+ما+ر) (ف - اس - مذ ، ج - ونه) شمېر - تعداد معلوموونه - (د فارسۍ تلفظ شُمار (د شین پېښ سره) دے - پښتو کښې دا سُکون وئیلې شي - خو په نظم کښې ځینې وخت شُمار هم راځي) -

**ـــــ تر سره کول** : پوره پوره شمارل - شمېر ختمول -

چا ئې شمار د زلفو هېڅ نهٔ کړ تر سره
د تار تار ئې عاشقانو شمارے وکړے (خوشحال)

**ـــــ کول** :-(۱) شمارل - شمېرل - تعداد معلومول - (۲) په ډله یا ټولي کښې شمېرل

زړهٔ د هوا له خدایانو اوزګار کړه
پس ځان د حق له عبادو شمار کړه (سعید خټک)

**ـــــ کننده** :- (ف تر - اس - مذ ، ج ګان) (۱) شمار کوونکے - شمېر کوونکے - (۲) په حساب کښې هغه رقم چې د یو خاص شمېر نه اخستے شوے وي - هغه چې د کسر د خط د پاسه وي لکه ۳/۱۰ په دې کښې (۳) شمار کننده دے چې د لسو نه اخستے شوے وي -

**په ـــــ** :- (پَ) (۱) د شمار مطابق - په یو خاص تعداد مطابق د ګنتۍ مطابق - که شپه تیاره ده خو مانې په شمار دي (متل) - (۲) ډېر لږ چې شمېرلے کېدے شي -

د دستار سړي په شمار دي (خوشحال)

**په ـــــ راتلل** :- (۱) په شمېر کښې راتلل - شمېرلے کېدل - په حساب کښې شاملېدل په زمره کښې راتلل - (۲) عموماً په نفي کښې استعمالېږي - لکه ددغې جلسې خلق په شمار کښې نهٔ راځي - یعني ډېر زیات دي - بې شمېره دي -

**د ـــ نه بهر:** - (نَ+بَ+هَ+ر)

**د ـــ په هورته:** - (پَ+هُو+ر+تَ) چې شمېرلے نۀ شي - ډېر زيات - بې شمېره - ډېر زيات تعداد کښې.

**د ـــ ورځې دي (تيره وو!):** - د عمر ورځې په شمار دي - لږ شان عمر دے -

**شمارل:** - (ش+ما+ر+ل) (مص مت) شمېرل - تعداد معلومول -

**شمارلے:** - (ش+ما+ر+لَے) (اس - مف ، ج - لي) (۱) هغه څيز وغېره چې په شمېر کښې راغلے وي چې تعداد ئې معلوم کړے شوے وي - (۲) شامل کړے شوے - حساب شوے -

**شمارنه:** - (ش+ما+ر+نَ) (حمص) (۱) شمېرنه - تعداد معلومونه - (۲) شاملونه - په شمېر کښې راوستنه (په ډله وغېره کښې حسابوونه).

**شماروونکے:** - (ش+ما+رُو+ن+کے) (اس - فا ، ج - کي) شمېر کوونکے - تعداد معلوموونکے -

**شماره:** - (ش+ما+رَ) (اس - مو ، ج - رې) شمېر - تعداد معلومونه - د شمار بدل شکل دے -

**ـــ کول:** - شمار کول - شمارل -

هغه څوک چې د الفت په توري پوهه شو
نور په خولۀ د نورو توريو شمارۀ نۀ کا (خوشحال)

**په ـــ کېدل:** - په شمېر کښې راتلل - شاملېدل - له زمرې کېدل - په حساب کښې کېدل - اوس خوشحاله د لويونيو په شماره شه -

**د ـــ وتے:** - (دَ------وَ+تے)

**له ـــ ولے:** - (لَ----وَ+لے) چې شمارل ئې نۀ شي کېدے - د شمار نه بهر - بې شماره مجازاً ډېر زيات تعداد - ډېر ګڼ شمېر.

**شماري:** - (ش/شُ+ما+ري) (ف - اس - مو) (۱) شمېرنه - شمېرل - (۲) عموماً د لاحقې په طور نورو الفاظو سره راځي او د شمېر معنٰی ورکوي - مثالونه وړاندې راځي.

**اختر ـــ:** - (اَ+خ+تَ+ر) (ف تر - اس - مو) د ستورو شمارنه - ستوري شمېرنه - مجازاً د غم يا د انتظار له کبله شپه رونيوونه -

**سر ـــ:** - (سَ+ر) د سرونو شمېر کول - د کسانو شمار معلومول -

**مردم:** - (مَ+ر+دَ+م) د سړو شمېر - په يو ملک علاقه يا په ښار کښې د اوسېدونکے سړو، ښځو او د وړو شمېر کول - (دا تقريباً هر لس کاله پس - د لس کليزې په ورومبي کال کولے شي).

**شماس:** - (ش+ما+س) (اس - مذ) ځينو قصو (لکه بهرام شهزاده) کښې د يو فرضې د يو نوم -

**شمال:** - (ش+ما+ل) (اس - مذ ، ج - ونه) (۱) هغه هوا چې د شمال د طرفه راځي - د سحر هوا - صبا -

د چمن ګلونه واړه پرې تازه شو
شمال راغے ستا د مخ له ګُلدستهٔ (خواجه محمد)

(۲) مطلق هوا -

لکه دود چې غرونه غرونه خرګندېږي
تار په تار شي په يوۀ نرې شمال (رحمان)

**په ـــ پائېدل:** - په شمال وخت تېرول - په هوا ژوندے پاتې کېدل.

عاشق يا لکه لېوه په شمال پائي
بل په غټو سترګو خوب کا لکه سويه (خوشحال)

**شمال:** - (ش+ما+ل) (ع - اس - مذ) (۱) ګټ يا کين لاس - (۲) هغه طرف چې سړے د نمر خاتۀ په وخت نم ته مخ کړي نو ګټ لاس طرف ته ئې وي يا هغه طرف چې د قطب ستوري طرف ته وي - (د قطب ستورے تل په خپل ځاے ولاړ وي - د نورو ستورو په شان د خپل ځاے نه حرکت نۀ کوي) -

که به ډېر هزيمت راځخه توئې شول
وړاندې وروستو په يمن او په شمال (خوشحال)

**ـــ شرق:** - (شَ+ر+ق) (و ـــ شمال مشرق)

**ـــ غرب:** - (غَ+ر+ب) (و ـــ شمال مغرب)

**ـــ مشرق:** - (مَ+ش+ر+ق) (ع تر - تف) هغه طرف يا لورے چې د شمال او د مشرق ترمېنځه دے - قطب نمر خاتۀ طرف - قطبي نمرختيځ اړخ -

**ـــ مغرب:** - (مَ+غ+ر+ب) (ع - تر - تف) هغه طرف يا لورے چې د شمال او د مغرب په مېنځ کښې دے - د قطب قبيلې طرف - قطبي قبلئيز اړخ -

**شمالاً:** - (ش+ما+لَ+ن) (ع - تف) چې شمال سره تعلق لري - شمال طرف ته -

**ـــ جنوباً:** - (جَ+نو+بَ+ن) (ع تر - تف) شمال په لور او د جنوب په لور - د يو ځاے يا اوږد څيز په حقله وئيلے شي چې يو سر ئې شمال طرف ته دے او بل طرف ئې جنوب طرف ته دے - قطب په سهېل -

**شمالي:** - (ش+ما+لي) (عف تر - صف) د شمال اړخ سره تعلق لرونکے - د شمال طرف واله - قطبي - لکه شمالي ولايت -

**ـــ خوا:** - (خ+وا) (فپ تر - اس - مو) د قطب لورے - د قطب په لور - د قطب د لور علاقه -

**سمت ـــ:** - (س+م+ت) (ف تر - اس - مذ) د قطب اړخ ته - د يو ولايت (صوبې) نوم -

**شمازَی:** - (شَ+ما+زَ+ی) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د کبزيو څانګه ده او کبزي، سنځرخېل کاکړ دي -

**شمامه:** - (شَ+ما+مَ) (ع - اس - مو ، ج - مې) (۱) بوي - بوي - خوشبوي
(۲) خوشبويه څيز - خوشبوداره څيز.

**شمان:** - (ش+ما+ن) (ق ، اس - مذ - ج - ونه) خاکروبه - جاروکش -

**شماندروز:** - (شَ+ما+ن+د+رو+ز) (اس - مذ) يو قسم قيمتي رېښمن ټوکے - شمندر روز

**شمائل:** - (ش+ما+ئې+ل) (ع - ج) (۱) د شمال او د شميله جمع ده - عادتونه - خصلتونه لکه شمائل د نبي صلعم - د حضور پاک صلعم عادتونه او خصلتونه وغېره.

چې په شکل شمائل سړے ليدۀ شي
چې په حسن ګلزار دے هغه کس (خوشحال)

(۲) د لاحقې په طور هم استعمالېږي او د صفت معنٰی ورکوي لکه حور شمائل.

**ـــ نبوي:** - (نَ+بَ+وي) (ف تر - اس - جم) د حضور پاک صلعم عادتونه او خصلتونه - اخلاق وغېره.

**شمائم:** - (ش+ما+ئې+م) (ع - ج) د شميمه جمع ده - خوشبويانې -

**شلمبکار:** - (شَ+م+با+کا+ر) (اس - مذ) يو قسم زهر دي - سومبلکار هم ورته وائي

**شمبوزئي:** - (شَ+م+بو+زَ+ئي) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د سيمانيو څانګه ده سپين ترين دي -

**شمپرک:** - (شَ+م+پَ+رَ+ک) (اس - مذ ، ج - ان) ښاپېرک - شب پپرک -

**شمپو:** - (ش/شې+م+پو) (انګ - اس - مذ) د سر وينځنه - د سر د وېښتو وينځل - شامپو.

**ـــ کول:** - د سر وېښتۀ وينځل - د سر وېښتۀ په خاص قسم مائع مرکب سره وينځل - شامپو کول -

**شمت خېل:** - (شَ+مَ+ت+خېل) (اس - مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د عبدالله څانګه ده او عبدالله ، ابمل خېل ، ببلول زئ ، محسود دي - د

شمک خېلو څانګې - ضرب خېل ، ظریف خېل او عزوي خېل ، (شمت خېل نوم بل ځاے شمک خېل لیکلے دے).

**شمټ گر** :- (ش َ+م+ټ+گ+ر) (اس - صفت - مذ ، مو - ه) غیبت کوونکے - څټمیرے

**شمتو** :- (ش َ+م+تو+(ه) غیبت کوونکے - څټمیرے - شمت گر -

**شمته** :- (ش+م+ت َ) (اس - مو ، ج - تې) غیبت - څټمیري -

**ــــ کول**:- غیبت کول - څټمیري کول.

**شمتری** :- (ش َ+م+ت+ر َ+ی) (اس - مو) د ملا تیر مهره -

**شمتوره** :- (ش َ+م+تو+ر َ) (اس - مو ، ج - رې) د یوې مرغۍ نوم دے.

**شمتے** :- (ش َ+م+تے) (اس - مذ ، ج - تي) غیبت - پشي شابدوئیل - پشلاوئیل.

**شمټه** :- (ش+م َ+ټ َ) (اس - مو ، ج - ټے) د هلکانو د یوې لوبې نوم دے چې خپل کاڼي په یو قط کښې کښېږدي او بیا ئې د لوبې نه په لومه (کرۍ) ولي -

**شمزی** :- (ش َ+(د)+ز َ+ی) (اس - مؤ) شمزی - د ملا هډوکے -

که هزار ځله څوک سر وهي په مزکه

یا په موم تر شمځۍ ورولي ناف (خوشحال)

**شمخه** :- (ش+م+خ َ) (اس - مو ، ج - خې) (۱) یو قسم وابنهٔ دي - (۲) (ق) یو قسم غله ده چې شولو سره پیدا کېږي - شماخه -[ وزیري : شمیخه ]

**شمر** :- (ش+م َ+ر) (اس - مع د یزید د لښکر هغه شقي او تور زړے افسر چا چې حضرت امام حسین علیه السلام د کربلا په مېدان کښې شهید کړے وۀ - مجازاً - ظالم - شقي - ناترسه سړے -

زمانه پرې مسلط شمر سنګدل کا

د مقتول په وینو رنګ کاڼي کلا شي (حافظ)

**شمرتي** :- (ش+م َ+ر+تې) (اس - جم) مَلخوزې - یو قسم بوټي دے - خوشبویه چې وچولے او بیا ئې په کټوۍ کښې مصالو سره اچوي - حلبه -

**شمزی** :- (ش َ+م+ز َ+ی) (اس - مو) د ملا هډوکے - د ملا تیر -

**شمس** :- (ش َ+م+س) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) (عربي جم : شموس) (۱) نمر - نور - نمر - لمر - مېر - افتاب - (۲) د مسلمانانو په نومونو کښې هم راځي -

**شمس تبریز** :- (ت َ+ب+ري+ز) [اس مع - مذ] (۱) اصلاً د هغه ولي نوم دے چې د حضرت مولاناروم پیر وۀ چې تبریز سره ئې تعلق وۀ - (۲) یو بل ولي شمس الدین چې ملتان نه راغلے وۀ - دے هم وائي چې تبریز ته تلے وۀ ځکه دۀ ته هم تبریز وائي -

د ملتان شمسِ تبریزه

ستا شعله په هر چا تېزه (حافظ)

**شمس الدین کاکړ** :- (اس - مع) د ژوب د لوري د پښتنو یو ستر شاعر چې د یوان څښتن دے -

**شمس کور** :- (ش َ+م+سو+کو+ر) (اس - مع) د صافي مسعود څانګه ده او د مهمندو همسایه قبیله ده.

**شمسي** :- (ش َ+م+سي) (عف تر - صف) (۱) د نور (نمر) سره متعلق - نمر (نور) ته منسوب - (۲) د مسلمانانو د یوې فرقې نوم -

**ــــ کال**:- (کا+ل) (عف تر - اس - مذ ، ج - ونه) هغه کال چې د شمسي تقویم (کیلنډر) مطابق وي - یعني ۳۶۵ ورځې لري - (تشریح د شمسي کیلنډر د لاندې وګورئ).

**ــــ کیلنډر**:- (کې+ل+ن+ډ+ر) (اس - مذ ، ج - ونه) د ورځو میاشتو هغه حساب چې شمار ئې د نمر سره تعلق لري - یعني څومره موده کښې چې زمکه د نمر (نور) نه چاپېره یو ګردش پوره کړي نو یو کال پوره شي - دا کال د ۳۶۵ ورځو ۵ ګهینټو ، ۴۸ منټونو او د ۴۲ سیکنډونو وي خو کال د ۳۶۵ ورځو شمارلے شي د زیاتي وخت د پوره کولو د پاره په هر څلورم کال د فرورۍ په میاشت کښې یوه ورځ سېوا کولے شي - دا کال د لیپ کال بللے شي.

**ــــ نظام**:-(ن+ظا+م) (ف تر - اس - مذ) د نمر (نور) هغه نظام په کوم چې یو څو سیارې د نمر (نور) نه چاپېر په خپل خپل مدار او رفتار چکر لګوي - په اسمان کښې داسې نور هم ډېر نمرونه (نوروته ، لمرونه) دي کوم چې زمونږ د دې نمر په شان نظام لري -

**شمسي خېل** (۱) :- (ش َ+م+سي+خېل) (اس مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې د شېخ حسن څانګه ده او شېخ حسن ، تاجي خېل ، بومۍ ، نصرۍ ، کالو خېل ، احمد زئ ، درویش خېل وزیر دي -

**شمسي خېل** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې د جمال دین خېلو څانګه ده او جمالدین خېل ، وادن خېل ، خضر خېل ، علي خان خېل ، سرکي خېل ، مده خېل ، ابراهیم خېل ، اتمان زي ، درویش خېل ، وزیر دي - (شمسي خېلو ته اړاخېل هم وائي) -

**شمسي خېل** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د علي خېلو څانګه ده او علي خېل ، تپي خېل داوړ دي -

**شمسي خېل** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې د جلال خېلو څانګه ده او جلال خېل ، شېرخېل ، هست خېل ، ناناخېل ، بهلول زئ محسود دي -

**شمشا خېل** :- (ش َ+م+شا+خېل) (اس - مع) د پښتنو قبیله ده چې د ماول خېلو یوه څانګه ده او ماول خېل ، (هېبت خېل ، جوکي ، ادم خېل افریدي دي -

**شمشاد** :- (ش َ+م+شا+د) (ف - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) د یوې مشهورې ونې نوم دے چې د سروے په شان لوړه او نېغه وي - د معشوقې لوړ قد له ورسره تشبیه ورکولے شي -

تن مې خوار زبون شه له دردونو له فریاده

دربغه پېرۍ خم کړے د ځوانۍ سمه شمشاده (حافظ)

(۲) د مسلمانانو په نومونو کښې هم راځي -

**شمشتۍ** :- (ش َ+م+ش َ+ت َ+ی) (اس - مو) مشهور ځناور چې په اوبو او په وچه یو شان پاې - د ملا د پاسه ئې یو ډېر سخت او مضبوط ډال شان وي - (اردو :کچهوا) - شخنستۍ - شکرتاتے -

**شمشو** :- (ش َ+م+شو) (اس - مو ، ج - ګانې) د غَلو یو قسم سُومبه ده چې کنډېرې پرې کوي - یخچه -

**شمشو** :- (ش َ+م+شو) (ه - اس - مو) (د فارسۍ د "سنګ شوي" وران شکل دے چې معنٰی ئې کاڼي وینځل ده) قلعي کوونه -

**شمشو** :- (ش َ+م+شو)(اس - مو) (۱) د دال وغېره په اوبو کښې په یو خاص طریقه اړول را اړول چې نرې کاڼي او شګه وغېره ترې بېله شي - (۲) د پښتنو د زنانه ؤ نوم هم دے چې اصلاً شمسه دے.

**ــــ کول**:- دال وغېره په اوبو کښې په یو خاص طریقه اړول راړول چې نرې کاڼي شګه وغېره وویستے شي - د دال وغېره نه شګه او نرې نرې کاڼي ویستل -

**ــــ کېدل**:- د دال وغېره نه په خاص طریقه کاڼي او شګه وغېره وتل.

**شمشه** :- (ش َ+م+ش َ(ه) (اس - مو) دب دباو - رعب داب - شان شوکت -

**شمشېر** :- (ش َ+م+شې+ر) (ف - اس - مذ ، ج - ونه) تُور - تېغ - (دا لفظ اصلاً سم شېر دے یعني د زمري نوک یا نوکه - هغه هم د تورې په شان کږه وي).

**ــــ ابدار**:- (اب+دا+ر) (ف تر - صف) ځلېدونکې توره - ځلقېدونکې یا پرکېدونکې توره

**ــــ بُران**:- (بُ+ر+را+ن) (ف تر - صف) غوځه کوونکې توره - پرې کوونکې

توره.

ــــ **بکف**:- (بَ+کَ+ف) (ف تر- صف) هغه کس (سپاهي- مجاهد) چې توره ئې په موټي کښې نيولې وي- توره ايستلې- جنګ ته تيار-

ــــ **دو دم**:- (دو+دَ+م) (ف تر- صف) هغه توره چې دواړه مخه ئې تېرهٔ وي- دوه مخيزه توره-

ــــ **زن**:- (زَ+ن) (اس- مذ ، ج- ان) توره وهونکے- توره چلوونکے- تُور مار- توريالے-

ــــ **زني**:-(زَ+ني) (اس- مو) توره چلول- تورې وهل- د تورې د جنګ کار-

ــــ **زني کول**:- تورې وهل- په جنګ کښې تورې چلول- تُورماري-

ــــ **ساز**:-(سا+ز) (اس- مذ ، ج- ان) تورې جوړوونکے- هغه لوهار چې د تورو جوړولو په کار کښې ماهر وي-

ــــ **سازي**:- (سا+زي) (ف تر- اس- مو) د تورو جوړو نه- د تورو سازونه-

د ــــ **کېدل**:- د تورې د چلولو قابل کېدل-

خپل پردي چې د شمشېر شول
کـشتنـي تـر شـماره تېر شول (خوشحال)

**شمشېر خـان زئ** :- (شَ+م+شې+ر+خا+ن+زَ+ئ) (اس- مع) د پښـتنو د يـوې قبيلې نوم دے چې د پېروزيو څانګه ده- زرکون دي-

**شمشېر خېل** :- (شَ+م+شې+ر+خېل) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د خلي خېلو څانګه ده او خلي خېل ، ملي زاد داوړ دي-

**شمشېر خېل** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د اوياخېلو څانګه ده او جاني خېل ، ولي خېل ، اتمان زئ ، درويش خېل وزير دي- په بله شجره کښې د اوياخېلو په ځاے انديا خېل ليکلې دے-

**شمشېرکه** :-(شَ+م+شې+رَ+کَ) (ق ، اس- مو ، ج- کې) هغه لرګے چې د سپار کنده، تېرسره پرې کلکوي او موټې سره ئې يو ځاے کوي-

**شمع** :- (شَ+م+عَ) (ع- اس- مو ، ج- شمعې) موم بتې-

ــــ **انجمن**:- (اَ+ن+جُ+م+ن) (ف تر- اس- مو) (۱) د انجمن يعنې د محفل يا مجلس کښې بلېدونکې موم بتې-(۲) مجازاً هغه ښځه چې د پردې په ځاے مجلسونو له رونق ورکوي-

ــــ **ايمن**:- (اَ+ے+م+ن) (عف تر- اس- مو) هغه شمع چې د ايمن په وادۍ کښې بله شوې وه- مراد ترې هغه جلوه ده چې موسىٰ عليه السلام ته د طور په غر کښې ښکاره شوې وه-

ــــ **خاموش**:- (خا+مو+ش) (عف تر- اس- مو) هغه شمع چې چپ شوې وي- مجازاً مړه شوې شمع- مړه شمع-

ــــ **دان**:- (دا+ن) (عف تر- اس- مذ ، ج- ونه) د لرګي يا د چينۍ خاورې يا د کوم دهات (فلز) نه جوړ شوې هغه لوښے چې شمع په کښې ودرولې شي-

ــــ **ساز**:- (سا+ز) (عف تر- اس- مذ ، ج- ان) شمعې جوړوونکے- موم بتۍ جوړوونکے

ــــ **سازي**:- (سا+زي) (اس- مو) د شمعو د جوړولو کار کسب- د موم بتو د سازولو کار

ــــ **سحري**:- (سَ+حَ+ري) (عف تر- اس- مو) د سحر په وخت بلېدونکې شمع- يعنې هغه شمع چې لږ ساعت پس به مړه شي يا مړه کړے شي- مجازاً قريب المرګ سړے- هغه سړے چې د بوډا والي يا د مرض په وجه مرګ ته نزدې شوے وي-

ــــ **کافوري**:- (کا+فُو+ري) (عف تر- اس- مو) د شمعو يو قسم چې د کافورو په شان سپينه وي- دا قيمتي هم وي- او رڼا ئې هم تېزه وي-

ــــ **محفل**:- (م+ح+ف+ل) (و------ شمع انجمن)

ــــ **مزار**:- (مَ+زا+ر) (عف تر- اس- مو) هغه شمع چې په قبر بلوله شي-

**شمعه** :- (شَ+م+عَ) (و------ شمع)

**شمعي** :- (شَ+م+عي) (صف) چې شمعې سره تعلق لري-

**شمکزئ** :- (شَ+م+ک+زَ+ئ) (اس مع) د پښـتنو يو قبيله ده چې د اعشې زيو څانګه ده او اعشې زئ ، اچک زئ ، ابدال ترين دي-

**شمکلے** :- (شَ+م+کَ+لَے) (ق ، اس- مذ- ج- لي) (۱) د څادر يا د پټکي غاړو ته جوړ شوے جال چې د خوند ناکۍ د پاره جوړولے شي- ځونډې- (۲) د ټوکي هغه برخه چې جولائې د کډې نه پرې کړي نو تارونه فالتو پاتې شي ، ځيني خلق "شمکلے" هم وائي-

**شمکور** :- (شَ+م+کو+ر) (صف مذ ، مو- ه) شبکور- هغه کس چې د شپې ورته څۀ نۀ ښکاري-

**شمکوري** :-(شَ+م+کو+ري) (اس- مو) شبکوري يو مرض دے چې د شپې په کښې نظر نۀ لګي-

**شمکے** :- (شَ+م+کَے) (اس- مذ ، ج- کي) يو تريخ بوټے دے چې په داروګانو کښې استعمالېږي- کاسني-

لرې نۀ شوه پر صغرا د يار د تبې
که مې ډېر څښلې د صبر شمکے دے (علي خان)

**شمکے** :- (شَ+مَ+کے) (اس مع) فرضي نوم رغوي- متل دے که ملک سرے نېزې شي خو د شمکي پلا له ده-

**شمل** :- (شَ+م+ل) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د حسّو خېلو څانګه ده او حسّو خېل ، ملي زاد داوړ دي-

**شملانه** :- (ش+م+لا+نَ) (اس- مو ، ج- نې) بې توجهي- بې اعتنائي- بې پروائي -

**شمل خېل** :- (شَ+مَ+ل+خېل) (اس- مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د شادي خېلو څانګه ده او شادي خېل، بلال خېل ،حسن خېل ،مهمت خېل ، اتمان زئ ، درويش خېل وزير دي-

**شمل خېل** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د پېروال خېلو څانګه ده او پيروال خېل ، تترخېل ، (اخوروال) ، حسن خېل ، ادم خېل افريدي دي-

**شملزئ** :- (شَ+م+ل+زَ+ئ) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د توخي څانګه ده، غلځي دي-

**شملګے** :- (ش+م+لَ+ګَ+ے) (فپ اس- مو) د "شمله" تصغير- وړه شمله-

په شملګۍ دې شوم غلطه
چې کور ته ئې لاړم مور ئې لنګ وهلے ونه (ټپه)

**شمله** :- (ش+م+لَ) (ف- اس- مو ، ج- شملې) (۱) د پټکي هغه حصه چې په اخر سر کښې په تړلي پټکي ټومبلې شي- (ځيني وخت د پټو په زور نېغه ودرولے شي) -(۲) د پټکي هغه برخه چې د تړلو نه اول شاته پرېښودے شي-

دواړه شملې پرېږدي برېښوي ورته خپل ځان
ګـوره هـغه تـرکه به نظر کا په کوم ځوان (خوشحال)

(۱) (ق) د څادر حاشيه-

ــــ **کېدل**:- مجازاً- عزت جوړېدل- د فخر باعث ګرځېدل-

د حميد د ساده شعر کمال ګوره
چې شمله شوه د تمامي سربـنـي (حميد)

ــــ **دار**:- (دا+ر) (ف تر- صف ، مذ ، مو ه) (۱) هغه سړے چې د پټکي (لويه) شمله پرېښودې وي- (۲) عزت دار- عزتمند - (۳) هغه تړلے پټکے چې شمله لري-

ــــ **ور**:- (عزت دار- عزتمند -

**شمن خېل** :- (ددغ) (اس مع) د پښتنو د يوې لويې قبيلې نوم دے - دا محسود دي او په دوو برخو کښې تقسيم دي - برني شمن خېل او کوزني شمن خېل ، د برنو شمن خېلو ښاخونه دادي - خلي خېل ، چهارخېل ، بدين زي او گليشاه د پښتنو يو قبيله ده چې د ميراخېلو څانگه ده او ميراخېل ، شمي خېل ، جلال خېل ، ناناخېل ، بهلول زئ محسود دي -

**شمندروز** :- (شَ+مَ+ن+رو+ز) (اس - مذ) (۱) يو قسم قيمتي رېښمن ټوکے - قناويز -

اغوستن سره ئې پانړې د سومن دي
که د نورو جامې روغې شمند روز دي (خوشحال)

(۲) (ق) د سنبل گل -

خلق وائي يار دې تور دے
تور شمندروز دے اميران ئې بويوينه (ټپه)

**شمنگوټې** :-(شَ+مَ+ن+گُو+ټې) (اس - مذ ، ج - ټې) يو قسم بوټي دے چې د غنمو په فصل کښې پيدا کېږي -

**شمو** :- (ش+مو) (ق ، اس - مذ) د يو ټوکي نوم چې گلدار وي -

**شموټگر** :- (شَ+مُو+ټ+گ+ر) (ق - اس - مذ ، ج - ان) غيبت کوونکے - نمام - شيمتگر -

**شموټ گوه** :- (شَ+مُو+ټ+گ+رَ) (اس - مو ، ج - گرې) غيبت کوونکے - نمامه -

**شموخه** :- (ش+مُو+خَ) [اس - مؤ] (و---- شمخه)

تـه چې زهـد د ريـا په عمل بولې
وابۀ اخلي ځوک په شولو يا شموخه (خواجه محمد)

**شمورل** :- (ش+مو+ر+ل) [مص مت] د شمېرل بدل شکل دے - (و---- شمېرل)

د خوشحال وئيل به بې مضمونه نۀ وي
چـېرې نـه چې ئې مذاقو سره شمورې (خوشحال)

**شموزئ** :- (شَ+مـو+زَ+ئ) (اس - مـع) د پښتنو يـوه قبيلـه ده چې د هـارون خېلو څانگه ده - سناټيه کاکړ دي - الياس زئ ، اولالک زئ ، د شمو زيو څانگې دي -

**شموزئ** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د کودي زيو څانگه ده - او کودي زئ ، ببل خېل موسٰی زئ دي -

**شموزئ** :- (ددغه)(اس مع)د اسمٰعيل زيو ښاخ دے چې اتمان خېل دي - د دوي څانگې دا دي - ع خېل ، سرني خېل ، سرکاني خېل او پائنده خېل -

**شموزي** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د مندو زيو څانگه ده - بريځ دي -

**شموزي** :- ( ددغـه ) (اس مـع ) دا د خـوزو زيـو څانگـه ده چـې اکـوزي يوسفزئ دي -

**شموزئ** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو قبيله ده - د سر غره ؤ څانگه ده - کاکړ دي -

**شمول** :- (شُ+مُو+ل) شاملېدنه - پـه څـۀ کـار يـا ټـولي وغېـره کښې گډون - ورگډېدنه شموليت -

---- **کول** :- شاملېدل - ورگډېدل -

**شموليت** :-(شُ+مُو+ل+ي+يَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) شاملېدنه - په څۀ کار يا ټولي وغېره کښې شاملېدنه - ورگډېدنه -

---- **کول** :- شاملېدل - شامل کېدل - ورگډېدل - شريکېدل -

**شمه** :- (شَ+م) (اس - مو ، ج - شمې) توره خېمه چې د بزو د تور ژغوني نه جوړه شوې وي -

**شمه** :- (ش+م+مَ) (ع - مو ، ج - شّمې) (۱) لږ شان - پوټې شان - يو پوټسکے (۲) عادت - رسم - (۳) لږه شان خوش بوي -

**شمه** :- (شَ+مَ) (اس - مو - ج - شمې) د "شمع" پښتو تلفظ - (و---- شمع)

**شمه توره** :- (شَ+مَ+تو+رَ) (اس - مو ، ج - رې) د يوې مرغۍ نوم -

**شميا** :- (شَ+م+يا) (اس - مو) د مرزهومره يوه مرغۍ چې پـه رنگ توره وي - او سپين ټکي لري - د سپل په شکل کښې الوځي -

**شمی** :- (شَ+مَ+ی) (اس مع) د پښتنو يو قبيله - چې د برند خېلو څانگه ده او برند خېل ، چهار خېل ، برني شمن خېل ، شمن خېل محسود دي -

**شمي خېل** :- (شُ+مي+خېل) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د جلال خېلو څانگه ده او جلال خېل ، نانا خېل ، پهلول زي محسود دي -

**شُمي خېل** :- (ددغـه) (اس مـع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د شوگيو څانگه ده او د شوَگئ ، توري خېل ، ابراهيم خېل ، اتمان زئ ، درويش خېل وزير دي -

**شمي خېل** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د شمسي خېلو څانگه ده او شمسي خېل ، شېخ حسن خېل ، تـازي خېل ، بومی ، نصرئ ، احمد زئ ، درويش خېل ، وزير دي - بلـه شجره کښې د احمد زئ او نصرئ پـه مېنځ کښې کالو خېل هم ليکلي شوي دي - ددې نـه علاوه نصرئ په ځاے نصرالدين او بومئ په ځاے بومي ليکلي دي -

**شمي خېل** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د پلي خېلو څانگه ده او پلي خېل ، منزئ ، علي زي محسود دي -

**شمي خېل** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د نانا خېلو څانگه ده چې تپائي ، تپّي زاد داوړ دي -

**شمېدن** :- (شَ+مي+دَ+ن) [ف - مص] بوي کول - خوشبوي محسوسول -

د خطا اهو په بوي د نافې ښکار شي
راته بس د هغو زلفو شمېدن دے (خوشحال)

**شمېر** :- (ش+مي+ر) (اس - مذ ، ج - ونه) شمار - تعداد - حساب -

---- **کول** :- تعداد معلومول - شمارل -

---- **گر** :- (گ+ر) (ق ، اس - مذ ، ج - ان مـو ه) شمېر کوونکے - حساب اخستونکے حساب -

**په ---- کښې راتلل** :- په حساب کښې راتلل - په زمره کښې راتلل - په ډله وغېره کښې شمېرلے کېدل -

**د ---- علم** :- (ع+ل+م) حساب - رياضي -

**د ---- نه بهر** :- (بَ+هَ+ر)

**د ---- نه په هورته** :- (پَ+هُو+ر+تَ) هغه چې په شمېر کښې نۀ راځي - مجازاً ډېر زيات تعداد کښې - ډېر زيات گڼ -

**دطبع ----** :- (دَ+طَ+بَ+ع) د چاپ شوي کتاب يا د اخبار وغېره شمېر - د کتاب وغېره د چاپ شمېر -

**دنفوسو ----** :- (دَ+نُ+فُو+سو) د کسانو شمېر - د سرونو شمېر - مردم شماري -

**شمېر خېل** :- (شَ+مي+ر+خېل) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې رجي خېلو څانگه ده او رحي خېل ، رحيم داد ، عبدالرحمان خېل ، نانا خېل ، بهلول زي محسود دي -

**شمېره** :- (ش+مي+رَ) (۱) د شمېر بدل دے چې په مرکباتو کښې راځي - (۲) د شمېر امر دے -

**بې ----** :- (صف) داسې څيزونه وغېره چې شمار ئې نۀ وي يا شمارلے نۀ شي مجازاً ډېر زيات تعداد -

**د ---- وتې** :- (دَ------ وَ+تې)

**له ---- وتې** :- (د------ ؤ+تې) چې شمار ئې نۀ شي کېدے - د شمار نه بهر چې شماره - مجازاً - ډېر زيات تعداد - ډېر گڼ -

**گڼ ----** :- (گَ+نْ) ډېر زيات (په شمار کښې) ډېر زيات تعداد -

**شمېرل** :- (ش+مې+ر+ل) (مص) شمارل - شمار کول - تعداد معلومول -

که نور د زرو زریان لرې زما په مینه

دا فـقیر هـم یـو دار و شمېره له زره (خواجه محمد)

**شمېرلې** :- (ش+مې+ر+لَې) (اس - مف ، ج - لې) (۱) په شمېر کښې راغلې هغه څيز چې تعداد ئې معلوم شوے وي -(۲) په حساب کښې راغلې-

**شــمېرنه** :- (ش+مــې+ر+نَ) (حـمـص)(۱) شـمـارنه - تعـداد معلوموونـه - (۲) شاملوونه - په شمار کښې راوستنه - (په ډله وغېره کښې) حسابوونه

**شمېروونکے** :- (ش+مې+رُو+و+ن+کے) (اس فا - ج - کي) شمار کوونکے - تعداد معلوموونکے-

**ـــــ ماشين**:- (ما+شي+ن)

**ـــــ مشين**:- (مَ+شي+ن) (اس - مذ ، ج - ونه) هغه مشين چې د شمېرلو کار کوي - ليکل کولے ټينګ مشين - کلکولېټر -

**شميرئ** :- (شَ+مي+ري) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د پلي خېلو څانګه ده او پلي خېل ، منزئ ، علي زئ محسود دي -

**شمېزئ** :- (ش+مې+زَ+ئ) (اس مع) د پښـتنو يـو قبيلـه ده چې د رکنوال څانګه ده - لونِي دي-

**شمېزئ** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې مَسې زيـو څانګه ده - استرانه دي -

**شمېزئ** :- (ددغه) (اس مع) د پښـتنو يـو قبيلـه ده چې د حمزه زيـو څانګه ده او حمـزه زئ ، عربـي خېـل ، سنځرخېل کـاکړ دي - مهرزئ ، ميـرک زئ ، کشميرزئ او نورنګ زئ د شمير زيو څانګې دي -

**شمېزئ** :- (ددغه) (اس مع) دا د خوزئيو څانګه ده - چې اکوزي يوسفزي دي-

**شميست** :- (ش+مِ+س+ت) (ف - اس - مذ ، ج - ان) کيمسټ - هغـه کـس چې د کيميـا پـه علـم پـوهېږي - کيميـا دان - عـام طـور سـره انګريـزي دوا فروش ته وائي -

**شـميم** :- (شَ+مـي+م) (ع - اس - مـذ ، ج - ونـه) (۱) د خوشـبوي نـه ډکـه وږمـه - خوشبوداره هوا -

د بلبلو بې خودي بې ځايه نهٔ ده

چې مستېږي د ګـلونو له شميمه (خوشحال)

(۲) د مسلمانانو نارينه ؤ او د زنانه ؤ په نوم کښې هم استعمالېږي -

**شميمه** :- (شَ+مي+مَ) (صف - مو ، ج - مې) د "شيم" تانيث دے - (و---- شميم)

**شنا** :- (ش+نا) (ف - اس - مو) لمبا - د لمبوفن - تاري - لاټبو -

پــه شــان تر واتهٔ نــهٔ شي

څو چې بخت نهٔ شي رفيق (خوشحال)

**ـــــ ور**:- (وَ+ر) (و تر - اس - مذ ، ج - ان) لامبوزن - لامبـو وهـونکے - د لامبـو د فن ماهر

**ـــــ وره**:- (و+رَ) (فپ تر - اس ، مو ، ج - رې) (د شناور تانيث) لامبـوزن - د لامبو د فن ماهره -

**ـــــ وري**:- (وَ+ري) (ف تر - اس - مو) لامبو وهنه - تاري وهنه -

**شناځ** :- (ش+نا+د+ز) [اس - مذ] شناز - هغـه ګـوډے يـا مشـک چې پـه اوبـو پورې را پورې ووځي -

زرهٔ عقل په مشک پور ګنې نافه شان

د شناځ غونډې له بادو ډک پسو شوې (سعيد)

**شناخت** :- (ش+نا+خ+ت) (ق ، اس - مذ) په اتې کښې مهارت بنودنه -

**شــناخت** :- (شَ+نـا+خَ+ت) (ف - اس - مــذ ، ج - ونــه) (۱) پېژنــدګلو - پېژندګلوي- واقفيت -

هر وېښتهٔ چې په صورت باندې ليدهٔ شي

که پـرې ځيرشې دشناخت وربه درته وازکا (خوشحال)

(په فارسي کښې تلفظ د "ت" سکون سره دے - په پښتو کښې زور سره وائيلے شي خو په نظم کښې د فارسي په تلفظ هم استعمالېږي - تعليم يافته خلق ئې هم ځينې وخت د فارسي په تلفظ ادا کوي) - (۲) علم -

خ - خـراب د غـافل کور شه

چې د شناخت له غوره سور شه (حافظ)

**ـــــ اچول**:- تعلق يا پېژندګلي پيدا کول - لکه هغه په دغه ښار کښې يو سره شناخت اچولے وهٔ -

**ـــــ کول**:-(۱) پېژندل - پېجندل - (۲) په ګڼو کسانو کښې د کوم خاص سړي (غل وغېره) پېژندل -

**ـــــ لرل**:پېژندګلو لري - واقفيت لري - (عموماً په نفي کښې استعمالېږي - لکه فلاني سره زما څهٔ شناخت نشته يا شناخت ورسره نهٔ لرم) -

**شناخته** :- (ش+نا+خ+تَ) (اِس - مؤ - ج - تې) شنخته - خازه - د قبر تر سره ليکلې شوي تخته -

**شـناخته** :- (ش+نـا+خ+تَ) (ف ، اس مـف ، ج - ګـان ، مـو - ګالے)پېژنـدے - پېجندلے شوے-

**شناختي** :-(ش+نا+خ+تي) (فپ تر - اس - مو) د پېژندنے - د پېژندلو -

**ـــــ کارډ**:-(کا+ر+ډ) (انګ ف تر - اس - ج - ونه) (۱) هغه وړوکے شان کـارډ - چې د يو ملک د حکومت د طرفه جاري کېږي او په دې باندې د ملک د هر استوګن تصوير ، نوم او پته وغېره ليکلې وي -(۲) مذکوره بالاقسم کارډ چې مختلفې اداري کالجونه وغېره طالب علمانو وغېره ته جاري کوي-

**شناخځه** :- (ش+نا+خ+(د)+زَ) (اس - مو) (و---- شنخته)

**شناخځه** :- (ش+نا+خ+(ت)س) (اس - مو) (و---- شنخته)

**شنار** :- (ش+نا+رَ) (ق ، اس - مو - ج - رې) د ازغي يو قسم - يو قسم اغزے -

**شناز** :- (شَ+نا+ز) (اس - مذ ، ج - ونه) هغه ګوډے يا مشک چې هوا په کښې ډکه کړي خولهٔ ئې کلکه بنده کړي او بيـا پـرې پـه سيند کښې پـورې ووځي -

لکه ډک شي هسې تش شي

د شـناز دے سـتا امـاس (خوشحال)

په دا مېنځ کښې يو عظيم درياب بهېږي

تـش بـازو بـه پـورې نــهٔ ووځي بې شنازه (خ محمد)

**ـــــ ګېډے** :- (ګې+ډے) (اس - صف) (۱) هغه کس چې ګېډه ئې لکه د شناز پړسېدلې وي - مجازاً لوېي خېټې والـه - خېټور - ګېډور - (۲) هغه کس چې په ګېډه کښې ئې اوبهٔ شوې وي - جل وهلے -

**ګېډه ـــــ کول**:- ګېډه پړسول - ډېرې زياتې اوبهٔ څښکل -

**شـناس** :- (ش/شَ+نـا+س) (ف - لاحقـه) د فارسي لاحقـه ده - نـورو الفـاظو سره راځي او د "پېژندونکے" تميز کوونکے - معنٰی ورکوي - (مثالونه وړاندې راځي) -

**ځب (ژب) ـــــ**:- (ځ/ژ+ب) د ځبې (ژبې) د علم پوهان - د لسانياتو ماهر-

**حق ـــــ**:- (حَ+ق) د حق پېژندونکے - د رښتاو پېژندونکے -

**رمز ـــــ**:- (رَ+م+ز) په رموز پوهېدونکے - په اشارو کنايو پوهېدونکے-

**زبان ـــــ**:- (ز+با+ن) (و---- ځب شناس)

**شرق ـــــ**:- (ش+ر+ق) هغـه کس چې د شرق د خلقو د ادب او ژبې وغېره پـه حقله علم لري - مستشرق -

**فرض ـــــ**:- (فَ+ر+ض) هغه کس چې خپل فرض او ذمه داري ښې پېژني يعني خپل فرض او ذمه داري ښې پوره کوي -

**قدر ـــــ**:- (قَ+د+ر) قدر پېژندونکے - په قدر او قيمت پوهېدونکے - قدر کوونکے

**مردم** :- (مَ+ر+دُ+م) د بني ادمو پېژندونکے - په ښهٔ او بد بني ادم کښې تميز کوونکے۔

**مزاج** :- (م+زا+ج) مزاج او طبيعت پوهېدونکے۔

**شناسا** :- (ش/شَ+نا+سا) (ف - اس فا) پېژندوکے - تميز کوونکے -

**شناسائي** :- (ش/شَ+نا+سا+ئي) (ف تر - اس - مو) پېژندګلو - واقفيت -

**شناسي** :- (ش/ش+نا+سي) (ف - مو) د لاحقې په طور نورو الفاظو سره راځي - عموماً د "شناس" واله مرکباتو نه اسم جوړوي - لکه ، فرض شناس - قدر شناس وغېره -

**جب (ژب)** :- (ج/ژ+ب) جب (ژب) پوهنه - د ژبې په علم پوهېدنه -

**زبان** :- (زَ+با+ن) (و---- ځن شناسي)

**ژب** :- (ژ+ب) (و---- جب شناسي)

**شرق** :- (شَ+ر+ق) د شرقي خلقو د ادب ، ژبې (ځبې) وغېره په حقله علم لرنه -

**فرض** :- (فَ+ر+ض) د فرض پېژندنه - د خپلې ذمه داري پېژندنه -

**قدر** :- د چا د قدر پېژنه - د چا د اهليت ، قابليت ، هنر وغېره قدر کوونه -

**مردم** :- (مَ+ر+دُ+م) د سړو پېژندنه - د سړو د قابليت او قدر و قيمت پېجندنه - ښهٔ اهل او قابل سړي او په نا اهل او نا قابل سړي کښې او بېلتون کوونه -

**شناعت** :- (شَ+نا+عَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) بدي - خرابي -

**شناغله** :- (ش+نا+غ+لَ) (ق ، اس - مو ، ج - لې) جنجک چې د يوې ونې دانې دي - مېده کړي او بيا اوړو سره پاخه کړے شي -

**شنالغه** :- (ش+نا+ل+غَ) (ق ، اس - مو ، ج - غې) خمبيره چې لا تياره شوې نهٔ وي

**شناورګے** :- (ش+نا+و+ر+ګے) (اس - مذ ، ج - ګي) چل ړيرے - هغه کس چې په ړيره کښې ئې تور او سپين وېښتهٔ وي -

**شناوے** :- (ش+نا+وے) (اس جم) (١) شوملې - شنېبې - شنوبے - (٢) شوملې چې تېنګې نهٔ وي۔

**شنبه** :- (شَ+م+بَ) (ف - اس - مو ، ج - بې) د خالي ورځ - د هفتې ورځ - هغه ورځ چې د جمعې نه پس راځي -

ورځ هغه ښه ده چې ته په کښې خوشحال ئې
کــه شــنبه کــه ســر شــنبه کـه اديــنه (خوشحال)

**شنپشن** :- (شَ+ن+پ+ش+ن) (اق ، صف ، مذ ، مو - ه) خور ، خور وور - تيت - تاشپتاس

ــــ **تيا** :- (ت+يا) د خور وور کېدلو حالت - خورېدنه - تيتېدنه - تيت واله -

ــــ **کول** :- (خورَول - تيت کول - تاشپتاش کول -

ــــ **کوونکے** :- (کَ+وُو+ن+کے) خورَوونکے - تيتوُونکے - خوروور کوونکے - تاشپتاس کوونکے -

ــــ **کېدل** :- خورېدل - تيتېدل - خور وور کېدل - تاشپتاش کېدل -

ــــ **کېدنه** :- (کې+د+نَ) (حمص) خور وور کېدنه - خورېدنه - تيتېدنه - تاشپتاش کېدنه

**شنتيا** :- (شَ+ن+ټ+يا) (اس - مو ، ج - ګاني) مستي -

**شنټنګ** :- (شَ+ن+ټ+ن+ګ) (انګ - اس) د رېل ګاډي د انجن د يوې پاټلۍ نه بلې پاټلۍ ته اړونه يا اوړېدنه - لاړ بدلونه -

**شنتۍ** :- (شَ+ن+تَ+ی) (ق ، اس - مو) د سيند غاړې ته د کاڼو ترلې باده پُشته

**شنجکي** :- (شَ+ن+ج+ک+ی) (اس - مو) وړه دانه - (چې عموماً په ترخ کښې يا خانګو کښې خيژي)۔

**شنجه** :- (شَ+ن+جَ) (اس - مذ - ج - شنجے) غټه دانه - غټه ننکۍ - (چې عموماً په ترخ يا خانګو کښې خيژي) -

**شنجۍ** :- (شَ+ن+ج+ی) (اس - مو) د ملاتير - د ملا د مېنځ هډوکي شمزۍ -

**شنخا** :- (ش+ن+خا) (اق ، اس - مو) چڼاسه - هغه شينکے غوندې چې په ميوه يا په غوښه کښې پيدا کېږي -

**شنخته** :- (ش+نَ+خ+تَ) (اس - مو ، ج - تې) د کاڼي هغه هواره تخته چې د قبر سر ته ودرولے شي - په دې تخته باندې د قبر د مړي - قوم - څهٔ حالات او د مړينې تاريخ وغېره ليکلے وي - لوحِ مزار - شناخته

چې په دنيا په ښه رانغلې
بيا مې د شنختو په سر مه وهه لاسونه (ټپه)

**شند** :- (شَ+ن+د) (اس - مذ) د شاهين بدل شکل دے چې مشهور ښکاري مارغهٔ دے - شهند -

**شند** :- (ش+ن+د) (اس - مذ ، ج - ونه) (١) ستم - جور - ځور - زياتے - (٢) حېرانتيا - تعجب -

ــــ **کول** :- تعجب - حېرانتيا - څرګندول - (افريدي)

**شندل** :- (ش+ن+د+ل) (مص) (١) نوستل - خورول - خور وور غورځول - شيندل - (٢) قربانول - فدا کول۔

**شندلے** :- (ش+ن+د+لَے) (اس - مف) (١) نوستلے شوے - خور وور غورزولے شوے - شيندلے - (٢) ځار کړے شوے - فدا کړے -

**شندنه** :- (ش+ن+د+نَ) (حمص) (١) نوستنه - خوروونه - شيندنه - (٢) ځارنه - قربانونه -

**شندوکے** :- (ش+ن+دو+ن+کے) (اس - فا - ج - کي) (١) نوستونکے - خوروونکے - خور وور غورځوونکے - شيندونکے - (٢) ځاروونکے - قربانوونکے -

**شنده** :- (شَ+ن+دَ) (اس - مو ، ج - دے) (١) هيجان - بکواس - فضول ګوي اوتې بوتې - (٢) مسخره - ټوقه - وشته - (٣) فضول خرچي - اسراف - (۴) په څهٔ کار زياتے - نامناسب عمل -

ــــ **بلا** :- (بَ+لا) (پ تر - اس - مو ، ج - شندي بلاګان) عجيبه بلا - نااشنا بلا۔

ــــ **کول** :- زياتے عمل - نامناسب عمل کول -

اے وروستے عقله درېغه که پخواوې
ما به ولې په خپل ځان کړه هونبره شنده (خوشحال)

**شندے** :- (شَ+ن+دَے) (اس - مذ ، ج - ي) د ګلِ لاله يو قسم -

د شندي د نرګس فرق به چېرې نهٔ وهٔ
کـه ګلونه د چمن واړه شېدا وے (خوشحال)

ــــ **ګل** :- (ګُ+ل) (اس - مذ ، ج - ون) د لاله ګل -

که هر څو د شندي ګل څهٔ ښهٔ ليدهٔ شي
رخ ئې نهٔ دے چې سيالي کا له نرګسه (خوشحال)

**شندے** :- (شَ+ن+دے) (اس - جم) د شنده جمع - مشادے - تماشې - عجيبه څيزونه -

ــــ **کول** :- (١) په څهٔ کار کښې زياتے کول - فلاني خو په حلوه شندې وکړې - (٢) بد عمل کول - زياتے کول -

ــــ **کېدل ، په چا** :- بد عمل کېدل - بدسلوکي کېدل - زياتے کېدل - ناسازې کېدل

په خپل يار به ئې کيدا دا هسې شند ے
چــې همېــش ئــې د رقيب خبرې نغوتې (خوشحال)

**شنډ** :- (شَ+ن+ډ) (صف - مذ ، مو - ه) (١) بې حاصله - بې ميوې - هغه ونه چې ميوه نهٔ کوي - (٢) (مو) هغه ښځه چې اولاد ئې نه کېږي -

که مېوه د چند ن نشته هسې شنډ دے
لائې ښهٔ تر ميوه دارو ونو خنډ دے (خوشحال)

ــــ **بخت** :- (بَ+خ+ت) هغه بخت چې مېوه نهٔ نيسي - بې حاصله بخت -

بدبختي - بدنصيبي -

شکايت کوم له خپله شنډه بخته
ګيله نهٔ کړم له بېچو نه مهربانه (حافظ)

ـــــ **توب**:- (تو+ب)

ـــــ **تيا**:- (ت+يا) (اس-مذ) شنډوالے - د بال بچ يا د مېوو نه راوړلو حالت۔

ـــــ **والے**:- (وا+لے) (اس-مذ) د شنډکېدو حالت - د بال بچ يا د ميوهٔ د نهٔ راوړلو حالت - شنډ توب -

**شنډ** :- (شُ+ن+ډ) (سابقه) د شونډه مخفف دے - نورو الفاظو نه وړاندې راځي - لوړ چړگ معنٰی ورکوي -

ـــــ **پاره**:- (پا+رَ) (و---- شونډه پاره)

ـــــ **کيز**:-(کي+ز) (پ تر-صف ، مذ ، مو-ه) شونډو سره تعلق لرونکے - شونډو واله۔

ـــــ **چړگ**:- (چ+ر+گ) د چړگانو يو لوے قسم چې په مخوکه ئې يوه لويه شونډه شان وي -

**شنډاک** :- (ش+ن+ډا+ک) (ق ، اس-مذ) د يوې لوبې نوم دے چې په پينځو لومو کوله شي -

**شنډک** :- (شَ+ن+ډ+ک) (صف-مذ ، مو-ه) بې څوکه - چې هيڅوک ئې نهٔ وي - هغه مور او پلار چې اولاد ئې نهٔ وي - مجازاً بې څوکه -

نن تنها بې قدره ناست يم
سپېرهٔ سر لکه شنډک (حسين)

**شنډکے** :- (شُ+ن+ډَ+کے) (اس-مذ ، ج-کي) کبے - لباش -

**شنډل** :- (شَ+ن+ډ+ل) (و---- شډل)

**شنډول** :- (شَ+ن+ډَ+ؤ+ل) (مص مت) شنډ کول - بې حاصله کول - بنځهٔ د بال بچ د راوړلو نه پاتې کول -

**شنډونگ** :-(شَ+ن+ډَ+ؤ+ن+گ) (ق-حمص) (و---- شنډونه)

**شنډونه** :- (شَ+ن+ډَ+ؤ+نَ) (حمص) شنډ کونه - بې حاصله کونه - د بال بچ د راوړلو نه پاتې کونه -

**شنډوُونکے** :- (شَ+ن+ډَ+وُو+ن+کَے) (اس فا-ج-کي) شنډ کوونکے - بې حاصله کوونکے - د بال بچ د راوړلو نه پاتې کوونکے -

**شنډي** :- (شَ+ن+ډَ+ي) (اس-مو) (۱) د بيکاڼے پيچے - (۲) د اکوړ (غُز) دانې چې لاد پوستکي نه نهٔ وي راوتې - (۳) د کچه اکوړ دانې۔

**شنډېدل** :- (شَ+ن+ډې+د+ل) (مص لا) (۱) شنډ کېدل - بې حاصله کېدل - (۲) د بال بچ نه پاتې کېدل - (۳) د ونې بې مېوې کېدل -

**شنډېدنگ** :- (شَ+ن+دې+د+ن+گ) (ق-حمص) (و----- شنډېدنه)

**شنډېدنه** :- (شَ+ن+ډې+د+نَ) (حمص) (۱) شنډ کېدنه - بې حاصله کېدنه - (۲) د بال بچ د راوړلو نه پاتې کېدنه (د ښځې) - (۳) د ونې د مېوې د راوړلو نه پاتې کېدنه۔

**شنډېدونکے** :- (شَ+ن+ډې+دُو+ن+کے) (۱) شنډ کېدونکې - بې حاصله کېدونکې - (۲) د بال بچ راوړلو نه پاتې کېدونکې (ښځه) - (۳) د مېوې د راوړلو نه پاتې کېدونکې (ونه) -

**شنډين** :- (شَ+ن+ډي+ن) (صف-مذ ، مو-ه) شنډ - بې ثمره -

اميد وار نه شو زما د اميد بوټے
چې په اصل پيدا شوے و شنډين (حسين)

**شڼ** :- (شَ+ڼ) (اس صوت) (۱) د اس د هنېدلو اواز - هڼا - (۲) د ونو د څانگو په زوره د خوځېدو اواز - (۳) د کاغذ د خوځېدو اواز - (۴) د ماشومانو چنچنې اواز - چڼ -

ـــــ **شڼ**:- (شَ+ڼ) (اس صوت) د "شڼ" متواتر اواز راتلل - شنېدل -

ـــــ **شڼ کول**:- (و----- شنېدل)

**شڼ** :- (ش+ڼ) (صف-مذ ، مو-ه) مست - بېخود - مدهوش -

زهٔ رقيبان پېژنم بنياد به مې ئې وبنځهٔ
دربغه که په لاس کښې مې يو فوځ وے شڼولے (علي خان)

**شڼا** :- (شَ+ڼ+ا) (اس-مذ) مستي - بېخودي - مدهوشي -

**شڼا** :- (شَ+ڼ+ا) (اس صوت) (۱) د شڼ شڼ اواز - شنهار - د ونې د څانگو په زور زور سره د خوځېدو اواز - (۲) هڼا - د اس اواز - (۳) د چنچنې اواز - چنچڼ يا شڼ شڼ - شرنگا (۴) د گنگروگانو اواز (۵) د کاغذ د خوځېدو اواز -

ـــــ **کول**:- (۱) د شڼ شڼ اواز کول - د ونو د څانگو په زور زور سره په خوځېدو اواز کول - شنېدل (۲) د اس هنېدل (۳) د چنچنې اواز کول - چنېدل - شرنگېدل -

**شڼ شنے** :- (شَ+ن+ش+ڼ+ے) (اس-مذ ، ج-ي) (۱) چنچنے - د ماشومانو د لوبو څيز چې خوځولو سره اواز کوي - (۲) جرس -

**شڼشوب** :- (شَ+ڼ+شو+ب) (ق-مذ) د وريژو نه شگې ايستنه -

ـــــ **کول**:-د وريژو نه شگې ايستل - وريژې چاڼ کول -

ـــــ **کېدل**:- وريژې چاڼ کېدل -

**شڼول** :- (شَ+ڼ+و+ل) (مص مت) (۱) د ونې ښاخ يا څانگه په زوره زوره خوځول چې مېوه وغېره ترې ښکته پرې ووځي (۲) کاغذ خوځول راخوځول چې اواز ترې پيدا شي (۳) چڼول - د ماشومانو چنچنے خوځول چې اواز ترې پيدا شي (۴) د اس هڼول - اس په هڼا کول -

**شڼولے** :- (شَ+ڼ+و+لے) (اس-مف ، ج-لي) (۱) په زور زور خوځولے (د ونې څانگه وغېره) - (۲) مست - (ق)

زهٔ رقيبان پېژنم ، بنياد به مې ئې وبنځهٔ
دربغه که په وس کښې مې يو فوځ وے شڼولے (علي خان)

(۱) چڼولے - د ماشومانو چنچنے خوځولے -

**شڼونه** :- (شَ+ڼ+و+نَ) (حمص) د څهٔ څيز (لکه د گنگروگانو ، څانگې ، پاڼې يا کاغذونه) په خوځولو د شنشڼ اواز ويستنه -

**شڼوونکے** :- (ش+ن+و)وُو+ن+کے) (اس-فا ، ج-کي) (۱) د گنگروگانو په خوځولو اواز ويستونکے - (۲) د ونې څانگه يا ښاخ په زوره زوره خوځوونکے (۳) د کاغذ په تېزۍ سره خوځوونکے (چې اواز ترې پيدا شي) - (۴) چڼوونکے - د ماشومانو چنچنے په زوره خوځوونکے چې اواز ترې پيدا شي -

**شڼهار** :-(شَ+ڼ+ها+ر) (اس صوت) (۱) د شنشڼ اواز - د شنېدلو اواز - د ونې د ښاخونو په زور سره د خوځېدو اواز - شڼا (۲) د اس د هنېدلو اواز - هڼا (۳) چڼهار -

**شنېدل** :- (شَ+ن+ې+د+ل) (مص لا) (۱) د شنشڼ اواز کول - شڼا کول (۲) د گنگرو گانو اواز کول (۳) د ونې دڅانگو په زور زور سره په خوځېدو اواز - شڼا کول -

مهري ښاخونه مېوه دار وو چنېده پر طوطيان
د شنو طوطيانو په چڼ ، ښاخ چنېدلے نهٔ شي (حافظ)

(۴) د اس اواز کول - هانېدل - (۵) چنېدل - چنچڼ کول لکه د ماشومانو چنچنے (۲) د مرغو چغار کول -

**شنېدلے** :- (ش+ڼ+ې+د+لے) (اس-مف ، ج-لي) د ونې ښاخ ، څانگه چې په زوره زوره خوځولے شوې وي (لکه: دا څانگه شنېدلې ده ، په دې کښې بيرې نشته) هر هغه څيز (لکه گنگروگان ، کاغذونه وغېره) چې په خوځولو ترې د شنشڼ اواز ايستلے شوے وي -

**شنېدنگ** :- (شَ+ن+ږې+دَ+ن+گ) (ق-حمص) (و----- شنېدنه)

**شنېدنه** :- (شَ+نِ+ې+د+نَ) (حمص) د شهٔ ځیز (لکه ګنګروګان، ځاځکے، پاڼې یا کاغذونه وغېره) په خوځېدو د شنِ شنِ اواز ورکوونه)۔

**شـنېدونګے** :- (شَ+ن+رِي+دُو+ن+کے) (اس - فا - ج - کي) (۱) هغه ګنګروګان ځانګه د ونې ښاخ یا کاغذ چې په زوره زوره خوځېدو سره اواز پیدا کوي - (۲) شنِ شنِ کوونکے - چنچنے -

**شنېدهٔ** :- (ش+ن+ې+د) (حمص) (و---- شنېدنه)

**شنساري کور** :- (شَ+ن+سا+ري+کور) (اس مع) د "حیاتې کور" ورو‌کې ځانګه ده چې (شاه منصور خېل، دادو خېل، ترک زئ مهمند دي -

**شنشوبے** :- (ش+ن+شو+بے) (اس - مذ) ویلنے - پودینه -

**شنغار** :- (شُ+ن+غا+ر) (و----- شنقار)

**شنغړے** :- (ش+ن+غ+ړَے) (اس - مذ - ج - ي) تشې - توشتې - چې شنغړې ژور نهٔ کړي، پردے زوے لور به خپل نهٔ کړي (متل) -

**---- ژورول** :- تشې ژورول کنایه: محنت او سخت کار کول - که شنغړے ژور نهٔ کړې پردے زوے لور به خپل نهٔ کړي (متل) -

**شنفته** :- (شَ+نُ+ف+تَ) [ف -] اورېدلے -

**---- کېدل**:- اورېدلے کېدل -

عـاشـقانو د ارزو وکړه لیدن تـه
چې د ښکلي مخ صفت د شنفته شه (خوشحال)

**شنقار** :- (ش+ن+قا+ر) (ف - اس - مذ) باتور - عقاب - مشهور ښکاري مارغهٔ چې د باز نه هم لږ لوے او طاقتور وي -

نهٔ به باز نهٔ به شاهین نهٔ به شنقار شي
کـه تـپـوس د الـوتـو لـري بالـونه (خوشحال)

**شنقر** :- (شَ+ن+ق+ر) (و----- شنقار)

شیکرے ځورے نیسي زانې شنقر نیسي
تـربس بیـهان نـیسي زمرے ایغر نیسي (خوشحال)

**شنکار** :- (شَ+ن+کا+ر) (اس، (۱) مذ) کاښېزه زمکه -

**شنکاړه** :- (ش+ن+کا+ړَ) (اس - مو، ج - ړې) کاښېزه زمکه -

**شنکے** :- (ش+ن+کَے) (اس مذ ج - کي) شنه روئیدګي - واښهٔ مابنهٔ چې زمکه پرې شنه وي -

**شنکي خېل** :- (ش+ن+کي+خېل) (اس مع) د پښتنو قبیله ده چې بابکیو ځانګه ده او بابکي، حسوخېل، ملي زاد داوړ دي - د شنکي خېلو ځانګې دا دي - چارغل خېل او خجرم خېل -

**شـنکي خېـل** :- (ش+ن+کي+خېـل) (اس مـع) د پښـتـنو یـوه قبیـله چې د سـلطان خېلو یوه ځانګه ده او سلطان خېل، شیرګله، اکاخېل افریدي دي - په بله شجره کښې د سلطان خېلو د دریو ځانګو ذکر دے - د شنکي خېلو نشته -

**شنګ** :- (ش+ن+ګ) (اس - صوت) (۱) د ټوپک تماچې د ګولۍ په تېزۍ سره د تېرېدو اواز - (۲) د باران د ورېدو اواز - (۳) سپک شان اواز - نوے شان اواز - لکه یو شنګ (غوندې) مې اورېدلے دے - (۴) (ق) ډېر لږ ځیز - یو پوټے شان ځیز -

**---- پنګ**:- د ټوپک د ګولۍ تېزۍ سره د تېرېدو اواز -

که د تورو ټوپکو جنګ له لاړ شې
مـه پـرېـږه د ګولو له شنګه پنګه (احمد دین طالب)

**---- شنګ**:-(شَ+ن+ګ) (اس صوت) (۱) د شړنګ شړنګ لږ سپک اواز - (۲) د ټوپک د ګولو د تېزۍ سره تېرېدلو اواز - شئي شئي -

**شـنګ** :- (شَ+ن+ګ) (ف - صف - مذ، مو - ه) شوخ - چې په خبرو او عـادتونو کښې ئې شوخي وي - چالاک - په شاعرۍ کښې عموماً شوخ سره یو

ځاے د معشوقې د صفت په طور راځي -

په زړهٔ سنګه شوخه شنګه
جـفـا خـویـه، زړهٔ اوازه (خوشحال)

**شنګا** :- (شَ+ن+ګا)

**شنګار** :- (شَ+ن+ګا+ر) د شنګ شنګ اواز - د ټوپکو د ګولو په تېزۍ سره په خوا کښې د تېرېدلو اواز -

**شنګال** :- (شَ+ن+ګا+ل) (اس - مذ، ج ونه) ښوره - ښناګه - ښنګل -

**شنګرف** :- (شَ/شِ+ن+ګ+ر+ف) (ف - اس جم) د پارې او د ګوګړو یو قدرتي مرکب دے په داروګانو کښې استعمالېږي -

**شنګرفي** :- (ش+ن+ګ+ر+فې) (ف اس صف) د شنګرف په شان رنګ والـه - شوخ نارنجي رنګ چې سور والے په کښې زیات وي -

**شنګرک** :- (شَ+ن+ګ+ر+ک) (اس - مذ)عناب - د بېرې په شان یوه مېوه -

**شـنګرۍ** :- (شِ+ن+ګ+رَ+ۍ) (اس - مو) برج - هغه برج چې د حفاظت او ځان ساتنې د پاره مربع شکل کښې جوړ کړے شوے وي -

**شنګرۍ** :- (شَ+ن+ګ+رَ+ۍ) (اس - مو) د خاورین لوښو د جوړولو قالب -

**شنګره** :- (شَ+ن+ګ+رَ) (اس - مو) د پښې ګیټۍ -

**شنګرپ** :- (ش+ن+ګ+ر+پ)

**شنګرپ** :- (ش+ن+ګ+ر+پ) (و---- شنګرف)

**شنګړ** :- (شَ+ن+ګ+ړ) شنګن - شاګم - ښومکن - شګون - پال -

**شنګړه** :- (شَ+ن+ګَ+ړَ) (اس - مو، ج - ړې) متیـزه ښـځه - هغه ښځه چې د مور او پلار د رضا نه بغېر خپل اشنا سره وتښتي - شنګاړه -

**شنګشویه** :- (شَ+ن+ګ+شو+یَ) (مؤ) (و---- شمشو)

**شنګل** :- (ش+ن+ګُ+ل) (اس - مذ) شنګال - ښوره -

**شـنګن** :- (شَ+ن+ګ+ن) (اس - مذ، ج - ونه) شنګړ - شاګم - ښوګمن - شګون - فال

**شنګڼ** :- (شَ+ن+ګ+ڼ) (اس - مذ، ج - ونه) شګون - فال - پال - شګن -

**شنګورے** :- (شَ+ن+ګُو+رے) (ق، اس - مذ، ج - ري) یو غرئیز خړانګے بوټے دے چې د ستونو د بندولو د پاره پکارولے شي -

**شنګي** :- (ش+ن+ګي) (اس مع) د پښتنو یوه لویه قبیله ده چې د دورو بهلول زیو یو ښاخ دے - (د شنګي قبیلې ځانګې دا دي: مامذي - بوبلاے یا بوبالۍ، او سبکۍ، خومچ خېل، ماميا خېل، باچیاخېل، ارمړ خېل او وجي خېل

**شنګهار** :- (شَ+ن+ګَ+ها+ر) (و----- شنګار)

**شنګهائي** :- (شَ+ن+ګا+ئي) (اس مع) د چین د ملک یو لوے او مشهور ښار.

**شنل** :- (ش/ش+ن+ل) (مص مت) (۱) کنستل - کنل - (۲) دَ ورۍ وغېره تار په تار کول - (۳) خورول - (۴) لټول - تلاش کول -

**شنل** :- (شَ+نَ+ل) (مص) (کاکړ) تحقیق کول - پلټنه کول - جستجو کول

**شنِلے** :- (ش/ش+ن+لے) (اس مف، ج - لي) (۱) کنستے شوے - کنده (۲) تار په تار کړے - (ورۍ وغېره)(۳) خور وور کړے (۴) لټولے - تلاش کړے -

**شننه** :- (ش/ش+ن+نَ) (حمص) (۱) کنستنه - (۲) تار په تار کوونه - خوروونه (۳) لټوونه

**شننه** :- (شَ+ن+نَ) (اس - مو، ج - شنې) (کاکړ) جستجو - پلټنه - تحقیق -

**---- کول**:- (کاکړ) تحقیق کول - تجسس کول - پلټنه کول -

**شنني** :- (شَ+نَ+ني) (صف) زیتوني - ښوون - سره تعلق لرونکے -

**شنو** :- (ش+نو) د "شنهٔ" اضافي یا مجروري حالت -

**په ---- کول**:- ځاروي له د شین او تازه ګیاه خوراک شورو کول

**شنوا** :- (شِ+ن+وا) (ف - صف) اورېدونکے - سامع -

**ـــــ کول**:- اورېدل - سمع کول -

کوڼ بهتر دے چې څۀ نه اوري په غوږو

نـۀ چـې غـوږ کـاندي پـه بـد وئيـل شنوا (رحمان)

**شـنوار** :- (ش+ن+وا+ر) (اس مـع) د پښـتنو يـو قبيلـه ده - غلځـي دي - (زريـپ (ظريف) خېل او سپين خطي ددې قبيلې څانګې دي -

**شـنواري** :- (ش+ن+وا+ری) (اس مـع) د پښـتنو يـوه مشـهوره او لويـه قبيلـه ده - وائي چې د کس يا کاسي په دريو زامنو کښې د يو نوم "شينوارے" وۀ - دا شينواري د هغه اولاد دے - د دوي اصل وطن د قندهار خواوشا وۀ - د پنځلسـمې پېـړۍ عيسـوي خواوشـا کښـې دوي قطـب طـرف تـه راوکوچېدل او د کابـل سيند سـهېل طرف تـه ابـاد شـول - د دوي ګڼې قبيلـې دي - يعنـي علـي شـېرخېل ، خوګاخېـل ، شـېخ دل خېـل ، ميردادخېل ، سليمان خېل وغېره په دې کښې يو قبيله علي شېرخېل د پاکستان طرف ته اباد دي -

**شـنواري** :- (ش/ش+ن+وا+ري) (اس مـع) د صـافيانو څانګـه ده او صـافي د مهمندو همسايه ده -

**شنوالی** :- (ش+ن+وا+لَ+ی) (اس - مـو) د زيتـون دانـه - د زيتـون (ښـوون) د ونې تخم

**شنوارے** :- (ش+ن+وا+رې) (و--- شينوارے)

**شنوالے** :- (شُ+ن+وا+لے) (و---- شينوالے)

**شنوائي** :- (ش+ِن+وا+ئي) (ف - اس - مو) (۱) د اورېدولو قوت - سماعت (۲) اورېدنه - اروېدنه - (خصوصاً د شکايت اورېدنه)-

**شنوبے** :- (ش+نو+بے) (اس - جم) شوملې - شنبې - شلومبے -

په ساعت کښې رنګ و خوند د چارې نور شي

ويـنه پـۍ شـي شـنوبې ، شـنـوبې پنير (خوشحال)

**شـنوتان** :- (ش+نو+تـا+ن) (اس - مـو) د يـوې ونـې نـوم دے - ښـوون - لکـه د "شنوتانو له لرګيو د تبرنو لاستي جوړېږي" -

**شنول** :- (ش+نَ+ؤ+ل) (مص مت) (و---- شنل)

**شـنونکے** :- (ش+نُو+ن+کَے) (فـاع - مـذ - ج - کـي) (۱) کنسـتونکے (۲) تـار پـه تـار کوونکے - (وړۍ وغېره) - (۳) خور وور کوونکے (۴) ټيوونکے -

**شنوونکے** :- (ش/ش+ن+وُو+ن+کے) (فاع - مذ - ج - کي) (و---- شنونکے)

**شـنه** :- (ش+نَ) (اس - مـو ، ج - نـې) (۱) د شـين تانيـث - (۲) وابنـۀ مابنـۀ چـې زمکه ئې شنه کړې وي - سبزي - نبات - (۳) شنۀ وابنۀ - شنه ګياه -

**شنۀ** :- (ش+ن) (اس - ج) د شين جمع ده -

**ـــــ پيروي**:- (پې+رَ+وي) (اس - مو) د سترګې شين پرين -

**ـــــ مويز**:- (مُ+وي+ز) (اس - جم) شنه مېوه - شنۀ کشمش - شنې وڅکې -

**شنه** :- (ش+نَ) (صف - مو) د شين (صفت) تانيث -

**ـــــ ټوخله**:- (تُو+خُ+لَ) (اس - مو) د ټوخې يو قسم پـه فارسۍ کښـې ورتـه سياه سرفه وائي -

**ـــــ چاے**:-(چا+ے) (پ تر - اس - مو) هغه چاے چې د چايو شنې پاڼې پـه کښـې اچولے شي چې پۍ په کښـې وانۀ چولے شي - نو قهوه تـرې سازه شـي او چې پۍ پکښې واچولے شي نو توره چائے نومېږي -

**ـــــ خره**:- (خُ+ړَ) (اس - مو) د شپې نه پس د سحر د اولنۍ رڼا وخت -

**ـــــ ډوزه**:- شنه لوخړه - لويه لمبه -

که مې مينه وے رښتيا له دې رموزه

سر تر پايه سره لمبه شوے شنه ډوزه (حميد)

**ـــــ ډوزه ختل**:- لويه لمبه اوچتېدل -

اور د خوږو زړو دے چې د غرۀ په ونو بل شو

شنې ډوزې خېژي لـه ښـتره لـه چـناره (خوشحال)

**ـــــ زرغُنه**:- (زَ+ر+غُ+نَ)

**ـــــ زرغونـه**:- (زَ+ر+غُ+نَ) (اس - مـو ، ج - شـنې زرغـونې) د بـوډۍ ټـال - (قـوس زرغونې) -

**ـــــ زمرۍ**:- (ز+مَ+رَ+ی) د شين زمري تانيث دے - کنايـه : ډېره تکړه او بهـادره ښځه -

**ـــــ ريره**:- (ګي/ژي+رَ) هغـه ريـره چې پـه کښـې تـور او سـپين وېښتۀ تقريباً يـو هومره وي -

**ـــــ ښځه** يا **ښاځه**:- (خَ/شَ+(د) زَيَاخ/شا+د+زَ) (د - مو - ج - ے) د شين کاڼي نـه جوړے د قبر ښاځه - د قبر سر او پښـو تـه چې د کاڼي کومې تختې (جوړې کړې پرې) کښېښودے شي - هغه عموماً د داسې کاڼي وي کوم چې شين بخن شان رنګ لري او پـه اسانـه ترې هـواري تختې جوړېدلے شي - شنه ګياه د قبر د پاسه د برکت علامت ګڼلے شي -

کـــه ښځې شنې مې په قبر وي ولاړې

که غلام مريم نو راځي توکۍ پرې لاړې (غني)

**ـــــ غاړه**:-(غا+ړَ) (و---- شنه ټوخله)

**ـــــ غېره**:-(غې+ړَ)

**ـــــ غاړه**:-(غا+ړَ) (اس - مو - ج - ړې) پخولے - توره ټوخلې -

**ـــــ کرونده**:-(کَ+ر+وَ+ن+دَ) (اس - مو) کنايه : اسمان - شين اسمان -

**ـــــ کـوتره**:- (کَـو+تَ+رَ) (اس - مـو ، ج - شـنې کـوترې) ځنګلـي کـونتره - ډاګـي کوتره -

پاکبازان که په نو خطو ښکليو مينه

د هـوا پـه شـنو کـوتـرو بازان ښلي (حميد)

**ـــــ لارۍ**:- ښکلے بس - غالباً چې اول اول چلېدونکي بسـو نـه د شين رنګ وۀ ځکه "شنه لارۍ" يو عام ترکيب ترې جوړ شو -

شنې لارۍ په غرار وځي

سکوليان خوران په پښو ځي (غاړه)

**ـــــ لوخړه**:- (لُو+خَ+ړَ) شين رنګې لوګے - د ډېر تېز اور لُوګے -

سپيلني غونډې په اور د نو خط حسن

سـر تـر پـائي سره لمبه شم شنه لوخړه (حميد)

**ـــــ لوخړه کول**:- ښخي سوځول چې تشه لُوخړه پاتې شي - ډېر زيـات تـاؤ - غـم وغېره رسول -

**ـــــ لُوخړه کېدل**:- پـه اور کښـې د سوځېدلو نـه پـس شين لـوږے جوړېـدل - ښې کچه ډېر تاؤ رسېدل - شين ډَ ډوزے کېدل - ښخي سوځېدل - ډېر زيـات غم وغېره رسېدل -

**ـــــ هرېره**:- (هَ+ري+ړَ) (اس - مو ، ج - شنې دوېرې) د يوې مشهورې دوائي نوم دے چې لاپخه شوې نۀ وي او کچه وي - په مربّو کښې هم استعمالېږي

**خوا ـــــ کول**:- زړۀ شين کول - ډېر زيات خفه کول - تنګول -

**خوا ـــــ کېدل**:- زړۀ شين کېدل - ډېر خفه او زهيرکېدل -

**زاره ـــــ کول**:- (۱) چالـه ډېر زيـات تکليف او سـتړيه ورکول - (۲) پـه څۀ کـار کښې ځان بې کچه ډېر ستړے کول -

**شنۍ** :- (شَ+نَ+ی) (اس مع) د پښـتنو قبيلـه چې شان خېـل هـم نومېږي چې د بـډۍ خېلـو ښـاخ دے او بـډۍ خېـل زخاخېـل افريـدي دي - (د شـنۍ څانګې: عمر بيګ خېل او عثمان خېل) - (پـه بلـه شجره کښـې نشـته - د اَنۍ نوم شته خو دانۍ په اولاد کښـې د عمرخېـل او درويـش خېـل نومونـه ليکلي دي - د عثمان خېل نوم نشته) -

**شنې** :- (ش+نې) (اس - جم) د يوې ونې دانې دي چې تېـل ترې وباسلے شي - (ف خنجک) -

ـــــ **په شنې ورکول**:- (ق) کنایته: سود خوړل-سود خوري کول-روپۍ په سود ورکول-

**شنې** :- (ش+نې) د شنه جمع ده-

ـــــ **اوبه کول**:- تشې اوبه ترې جوړول-د اوبو د ډېر ولاړي له کبله بې خونده کول-لکه: دا ښوروا د شنې اوبهٔ ده-

ـــــ **اوبه کېدل**:-د اوبو د ډېر والي له کبله بې خونده کېدل-تشې اوبهٔ کېدل-لکه دا شلومبې خو شنې اوبهٔ شوې-

ـــــ **ختې**:- ډېرې ختې-لکه: "په دې شنو ختو کښې درله راغلم" -

ـــــ **ډوډوزې ختل (د څهٔ نه)** :- تک شین لوګې (د اورنه) پورته کېدل-

ـــــ **مرې**:-(مَ+رَ+ی) (اس-ج)هغه مرې چې د شیشې وغیره نه جوړوې شوې وي-او فېروزي رنګ لري-شینولې-

ـــــ **وشکې**:- (وُ(ت)س+کې) (اس-جم) شنه مېوه-شنه کشمش-شنهٔ مویز-

**شنې** :- (شَ+نې) (ق-اس-مذ) (۱) د یو مرض نوم-(۲) د چرګانو یا د کورنۍ مرغو یو قسم کټمل یا سپږۍ-(۳) د کونجکو یو قسم دے-چې شنهٔ خالونه پرې جوړ کړے شوي وي-

**شنے** :- (ش+ن) (و----- شینے)

**شنیبے** :- (ش+نې+بے) (اس-جم) شنوبے-شوملې-شلومبے-

**زېږے** :- (ظفر) لاوڼ-بوږ-ګونډار-کړې-

**شنید** :- (شُ+نې+د) (ف-اس) اورېدنه-اروېدنه-

پـــه شنید بـــه ئي کل اهل افرین کا
د سعید وئیل تر هند که تر ایران ځي (سعید)

**شنېدل** :- (ش+نې+د+ل) (مص) (۱) لړزېدل-رېږدېدل (۲) ویرې اخستل-پرېشان کېدل-

**شنیدل** :- (شَ+نې+د+ل) (مص) غرېدل-غرېبدل-غرچېدل-

**شنېدل** :- (ش+نې+د+ل) (مص) شوملې کېدل-شنوبې کېدل-

د ارزاني دنیا کړه تومنه
لـــه تومنې پاک شنېږه (ارزاني)

**شنیدن** :- (شُ+نې+د+ن) [ف-] اورېدنه-

نـــهٔ د عشق مدار یواځې په دیدن دے
په دا کار کښې لا په هورته شنیدن دے (خوشحال)

**شنیدني** :- (شُ+نې+دَ+نې) (ف-صف) د اورېدو لائق-د اروېدو جوګه.

**شنېدنه** :- (شَ+نې+د+نَ) (حمص) لړزېدنه-خوځېدنه-یرې اخستنه-رېږدېدنه

**شنېدُونکے** :- (شَ+نې+دُ+ن+کَ) (مف-مذ-ج-کې) لړزېدُونکے-د ویرې له کبله خوځېدونکے-رېږدېدونکے-

**شنیده** :- (شُ+نِي+دَ) (ف-اس مف)

که ربیار په یار مئین کړم نادیده
ور بـــه نهٔ کړم په دیده دا شنیده (حمید)

ـــــ **کېدل**:- اورېدلے کېدل-

عاشق مرګ اختیاروي ، له هجره تښتي
دا وینا لـــه دا نـــایـــانـــو شنیده شي (حافظ)

**شنېزه** :- (ش+نې+زَ) (اس مو) شینکے-شنه ګیاه-لکه: مال دا شنېزه په ډېر شوق خوري-

**شنېزے** :- (ش+نې+زَے) (اِس مع) د کاکړو په سیمه د یو شین غر نوم-لکه:

شنیزئي د جنت میان دے
لائقان بـــه بـــاندې اوسي غاړه

**شنیع** :- (شَ+نِي+ع) (ع-صف ، مذ ، مو-ه) بد-خراب-ناکاره-

**شنیلے** :- (ش+نې+لَے) (اس-مذ) هغه ځاے چېرته چې شین شینکے وي-سبزه زار-

**شو** :- (شو) (اس صوت) یو لفظ دے چې ځینې خلق ئې د خر د ودرولو د پاره استعمالوي-

**شو** :- (شو) (فعل) د شهٔ بدل شکل دے-یعني وُشه-شُد-

**شو** :- (شو) (ف-مذ) د شوهر (خاوند ښځه) مخفف دے-عموماً زن (ښځه) سره یو ځاے استعمالېږي-یعني زن وشو-ښځه او خاوند.

**شو** :- (شَو) (اس-مذ) د فارسۍ د "شب" پښتنو شکل دے-عموماً په مرکباتو کښې د سابقې په طور راځي-(مثالون ئې وړاندې راځي)-

ـــــ **پرک**:- (پَ+رَ+ک) ښاپېرک-

ـــــ **خون**:- (خو+ن) (اس-مذ ، ج-ونه) د شپې خون-په دښمن باندې د شپې ناڅاپه حمله کول-حمله کول-چپاؤ-شب خون-

ـــــ **خون وهل**:- په دښمن باندې د شپې په وخت ناڅاپه چپاؤ کول-

ـــــ **قدر**:-(قَ+د+ر) (اس-مذ ، ج-ونه)شب قدر-د قدر شپه-(و----- شب قدر)

ـــــ **کور**:-(کو+ر) (صف-مذ ، مو-ه) هغه کس چې د شپې ئې نظر نهٔ لګي-شمکور

ـــــ **کوري**:- (کو+ري) (اس مو) د شپې نظر نهٔ لګېدنه-شمکوري- شب کوري

ـــــ **ګیره**:-(ګې+رَ) (اس-مو ، ج-رې)د شپې ویښ پاتې کېدنه- شپه روڼول- شپه روڼي

چې خوب کوې خاورې به یوسي
شاه د هغوچې شوګېرې ورته کوینه (ټپه)

**شو** :- (شُو) (لاحقه) د ماضي فعلونو د جمع غائب او دجمع متکلم د صیغو د جوړولو د پاره پکارولے شي-لکه خفه شو-جوړ شو-(ځینې وخت شو په ځاے شول هم راځي)

**شُو** :- (شُو) (انګ-اس-مذ) بوټ-پېزار-(عموماً د انګریزۍ جمع شوز استعمالېږي)-

**شو** :- (ش) (انګ-اس-مو ، ج-ګانې) (۱) نمائش-د څهٔ کار-هنر-فن یا دکمال ښودنه-ښکاره کونه-(۲) په سینما کښې د فلم ښودنه ، یا د ښودنې وخت-لکه ورومبۍ شو-آخري شو-د نمائش وخت-

ـــــ **پسند**:- (پِس+َن+د) (انګ ف تر-صف ، مذ ، مو-ه) نمائش خوښوونکے-ظاهري ټیس ټپاس خوښوونکے-

ـــــ **روم**:- (رُو+م) (انګ تر-اس-مذ ، ج-ونه) هغه کوټه یا ځاے چېرته چې د خرڅ ساز و سامان ګاهکانو ته د ښودنې د پاره ایښودے شوے وي-ننداره کوټه-

ـــــ **شا**:- (شا) (اس-مو ، ج-ګانې) نمائش-ظاهري خبرې یا ښودنه چې حقیقت کښې هېڅ نهٔ وي-د دروغو نمائش-لافې شافې ډوزې ډازې-د دروغو دبکه درکه-

ـــــ **کول**:- نمائش کول-ځان ښودنه-کول-

**شوا** :- (شَ+وا) (سابقه)د سابقې په طور راځي او د شپې معنٰی ورکوي-

ـــــ **خون**:- (خو+ن) (اس-مذ ، ج-ونه) (۱) د شپې خون-(و----- شوخون)

د هجران په بلا صبر و سکون نهٔ شي
په یوهٔ شواخون بل شواخون نهٔ شي (حمید)

(۲) سخت مشقت-تکلیف-ځګر خون-ځګر خوني-

څوغمزې-ښېوې ، فتنې ، جلوې ، مانړے کړي
همره کېږي پـــه خـــوارانـــو شـــراخـــونونه (خوشحال)

ـــــ **روز**:-(رو+ز) (اس-مذ)یوه شپه او یوه ورځ-ورځ او شپه ځلیرښت ګینتې وخت-

ـــــ **شَو**:-(شَو) (اس-ظ)د شپې شپې-د شپه شپه-د یوې شپې دننه وخت کښې-

**شوار** :- (ش+وا+ر) (صف) خور کړے - هوار کړے - يوشان کړے-
**شوارع** :- (شَ+وا+رِ+ع) (ع-ج) د شارع جمع ده - لاړې - سړ کونه - شاهراګانې-
**شوارق** :- (شَ+وا+ر+ق)(ع-ج)د شارق جمع ده - روښانه ځيزونه - رڼاګانې-
**شوارول** :- (ش+وا+رَ+ؤ+ل) (مص مت) خورَول - غوړول - هوارَول - يو شان کول
**شوارونګ** :- (ش+وا+رَ+وَ+ن+ګ) (ق - حمص) (و---- شوارونه)
**شوارونه** :- (ش+وا+رَ+ؤ+نَ) (حمص) خورونه - غوړونه - فرش کوونه - هواوونه -
**شـــواروونکے** :- (ش+وا+رَ+وُو+ن+کَے) (اس فـاع - ج - کـي) خــوروونکے - غوړوونکے - هواروونکے - يو شان کوونکے -
**شواربدل** :-(ش+وا+رې+د+ل) (مص لا)خوربـدل - خوړيـدل - هواربـدل - يـو شـان کېدل -
**شواربدنګ** :- (ش+وا+رې+دَ+ن+ګ) (ق - حمص) (و----- شواربدنه)
**شواربدنه** :-(ش+وا+رې+د+نَ) (حمص)خوربدنه - غوړيدنه - هواربدنه .
**شـــواربدونکے** :- (ش+وا+رې+دُو+ن+کـے) (اس مــف - ج - کي)خوربـــدونکے. غوړېدونکے - خور کېددونکے - هواربدونکے -
**شواړ** :- (ش+وا+ړ) (صف - مذ ، مو - ه) شړم - سست پست -
**شواړ** :- (ش+وا+ړ) (صف ، مذ ، مو - ه) (۱) شاړه - ناهمواره - سخت شغ (۲) شړل بې نظمه - بې ډبه-
**شـواړه** :- (ش+وا+ړَ) (صـف - مـو ، ج - ړې) شـاړه زمکـه - هغـه زمکـه چې کـر کرونده پرې نۀ وي شوې - بنجره - غيرابادة -
**شواړې شواړې** :- (ش+وا+ړ+ش+وا+ړ) (صف - مو) (۱) ريبنـه ريبنـه - ټکـړې ټکړې -(۲) سست پست او بې نظمه - شاړ شپاړ -
**ـــ کول**:-(۱) ټکړې ټکړې کول - ريبنه ريبنه کول - (۲) شاړ پاړ کول بې نظمه بې ډبه کول - شړلول -
**ـــ کېدل**:-(۱) ټکړې ټکړې کېدل - ريبنه ريبنه کېدل - (۲) شاړ پاړ کېدل - بې نظمه او بې ډبه کېدل - شړ کېدل -
**شوال** :- (شَ+وا+ل) (ع - اس مع)د سپوږمۍ (قمري) کيلنډر لسمه مياشت - د اختر مياشت " د شوال" معنٰی پورته کېدل روانېدل - تلل دي - پخوا بـه عـرب خلق پـه دې مياشت کښې د سېل يا ښکار د پاره وتـل - نو ځکه ددې مياشتې نوم "شوال" شو -
**شوال** :- (شَ+وا+ل) (اس - مع)د يوې علاقې نوم دے - جنوبي وزيرستان کښې يو غر چې د خټکو اصل وطن وۀ-

پـه بل کال مې ويره شي ، لاړه دې نه شي
پـــــه ملکـــونـــو تـر شوال او تر توروال (خوشحال)

**شـوامخ** :- (شَ+وا+مِ+خ) (ع-ج) د شا مخـه جمع دے - لـوړوالي - اوچت والـي- بلندۍ -
**شواَن** :- (شَ+وا+وَ+ن) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله چې د سکندر خېلو ځانګـه ده او سکندر خېل ،باديوزئ ، خليخېل ، برني شمن خېـل ، شمن خېـل محسود دي - (په بله شجره کښې د باديوزئ پـه ځـاے بـاديوال خېـل نوم ليکلے دے) -
**شواهد** :- (شَ+وا+ه+د) (ع - ج) د شاهد جمع ده - ګواهان - شاهدان - ثبوتونه
**شواهق** :- (شَ+وا+ه+ق) (ع - ج) د شاهد جمع ده - لوړوالي - اوچتوالي - بلندۍ -
**شوائب** :- (شَ+وا+ء+ب) (ع - ج) د شائب جمع ده - (و---- شائبه)
**شوباکې** :- (شو+با+کَ+ې) (اس - مـع) د پښـتنو يـو قبيلـه ده چې د ګـدار يـو ځانګه ده - او ګراري شمي خېل ، پلي خېل ، منزئي ، علي زئي محسـود دي - (په بله شجره کښې د شمي خېـل پـه ځـاے شـميرۍ ليکلي دي او د شميرۍ په اولاد کښې د ګزاري نوم شته) -
**شوبک خېل** :- (شو+بَ+ک+خېل) (اس مع) د پښـتنو يـو قبيلـه ده چې د رحيم داد خېلو ځانګه ده او رحيم داد خېل ، عبدالرحمان خېل ، شبر خېل ، هيبت خېل ، ناناخېل ، بهلول زئي محسود دي -
**شوبله** :- (شـو+ب+لَ) (اس - مـو ، ج - لـې) (۱) هغـه زمکـه چېرتـه چې سيند پـه مختلفو چرو کښې تقسيم شي - چېرې چېرې په کښې بهېږي(۲) (ق) د سيند په مېنځ کښې د زمکې ځۀ برخه(۳) (ق) هغه نالۍ چې د نمجنې زمکې نـه چاپېره وکنسـتے شـي (۴) د يـو ژوي نـوم- ځنځـه ـهزار پايـه - (۵) شګلنه او نمجنه زمکه (ق) - (۲) جنګي ټينک -
**شوبۍ** :- (شو+بَ+ې) (اس - مو) د شبوګل -
**شوپ** :- (شُو+پ) (اس صوت)د ښوروا ، چائے وغېره ؤ سرت کولو اواز-
**شوپا** :- (شو+پا) (اس - مذ ، ج - ګان) ناسنته - هغـه چې سنت (ختنه) ئې نۀ وي شوې - شوپړ-
**شـوپرک** :- (شـو+پَ+رَ+ک) (اس - مـذ ، ج - ان) ښـاپيرک - خـاپيرک - چمبـرک - اسمان - ځکالے-
**شوپړ** :- (شو+پ+ړ) (اس - مذ ، ج - ان)(۱) جټ - ګوار - بې تعلمه او بې تهذيبه - جاهل - خرډک -(۲) هغـه کس چې د لاسونو پښـو پنجې ئې د معمـول نـه لوئې وي - (۳) ناسنته چې سنت (ختنه) ئې نۀ وي شوې - شوپا-
**شوپړه** :- (شو+پَ+ړَ) (اس - مو ، ج - ړې) (د شوپړ تانيث دے) - (و---شوپړ ۲ ۱ )
**شُوپه** :- (شُو+پَ) (اس - مذ ، ج - ګان) ناسُنته - هغه کس چې سنت (ختنـه) ئې نـۀ وي شوې - شوپړ - نامختون-
**ـــ توب**:- (تو+ب)
**ـــ والے**:-(وا+لے) ناسنت والے - نامختوني - شوپړ والے -
**شوپه شو** :-(شو+پَ+شو) (ا- ق ، تف) (۱) دانه وانه - تيت و پـرک - خور وور - تس نس - ترغے په ترغے -(۲) کنډ کپر -
**ـــ کول**:- دانه وانه کول - تس نس کول - خورول - ترغ په ترغے کول -

شـوه عجيبه زمـانــه د تماشو
چې ئې خانوادې کړې شو په شو (شمسس الدين کاکړ)

**ـــ کېدل**:- دانه وانه کېدل - تس نس کېدل - خور وور کېدل - ترغے پـه ترغے کېدل
**شوپيان** :- (شُو+پ+يا+ن) (اس - مذ ، ج - ونه) تاوان - نقصان - جرمانه -
**شوپيانه** :- (شُو+پ+يا+نَ) (ق ، اس - مو ، ج - نې)تهمت - تور - خجالت -
**ـــ لګول (په چا)**:- الزام لګول - تور پورې کول - تهمت لګول -
**ـــ لګېدل**:- تور پورې کېدل - تهمت لګېدل - الزام لګېدل -
**شوتالو** :- (شَو+تا+لُو) (اس - مذ ، ان) شلتالو - شفتالو - مشهوره مېوه -
**شوتتے** :- (شو+ت+تَے) (اس - مذ ، ج - تي) شمشتے-
**شوترکے** :- (شُو+ت+ر+کے) (اس جم) چنکے - شتے -
**ـــ وهل**:چنے کول - شتے کول -
**شوترلړ** :- (شو+ت+ر+لَ+ړ) [اس - مذ] (و---- شوتلړ)
**شوتل** :- (شو+تَ+ل) (اس - جم) شفتل - دڅاروو مشهور خوراک - رشقه -
**شوت لړ** :- (شُو+ت+ل+ړ) (اس - مذ ، ج - ونه) هغه دوه لرګي چې ورسره د ارهټ هغه پړے ترلے وي کوم سره چې لوټکې ترلے کېږي - شوترلړ -
**شوتله** :- (شَو+تَ+لَ) (و---- شوتل)
**شوته** :- (شَو+تَ) (ق ، اس - مو ، ج - تې) هغـه سلبښناکه (سربښناکه)ماده چې د ونو بوټو د ځينو حشرو نه پيدا کېږي او دغه بوټې وغېره وچ کړي-
**ـــ کول**:- په ونې يا بوټي کښې شوته (سلبښناکه ماده) پيدا کېدل -
**شوته** :- (شو+تَ) (صف) چونه شوې- په چونه وغېره مسالو جوړ شوے يا هوار شوے
**شوتي ۱** :- (شَو+تي)

**شوتے ۲** :- (شَو+تے) (اس - (۱) مو ، (۲) مذ) (۱) ټوقې - وشتې - (۲) بکواس -
**ـــــ کول**:-(۱) وشتې کول - ټوقې کول - (۲) بکواس کول -
**شوټ** :- (شُو+ټ) (صف - مذ ، مو - ټه) هغه سړے چې لاس و پښې ئې بېکاره شوې وي - ګډ -
**ـــــ لاسے**:- (لا+سے) (اس - مذ ، ج - ي) هغه کس چې لاس ئې بېکاره شوے وي - چوتټے - سوتټے - بلډے -
**شوټ** :- (شُو+ټ) (انګ - فعه) د ټوپک وغېره ګذار - ويشتنه -
**ـــــ کول**:-په ټوپک تماچه ويشتل - په ټوپک تماچه ويشتلو سره مړ کول - وژل - (وجل)-
**شوټکه** :- (شُو+ټ+کَ) (اس - مذ ، ج - کے) د جوارو وړے - سوټکه - سوټه-
**شوټنګ** :- (شُ+ټ+ن+ګ) (انګ - اس - مذ)(۱) ويشتنه - (۲) فلم جوړونه -
**شوټه** :- (شُو+ټَ) (اس - مو ، ج - ټې) کچه خربوزه - کچرۍ -
**شوخ** :- (شو+خ) (صف - مذ ، مو - ه) خوشحاله - مانع - لکه يتيم په ژړا شوخ دے زړۀ ئې پوخ دے (متل)-
**شوخ** :- (شو+خ) (ف ، صف ، مذ - مو - ه) (۱) ګستاخ ټوقې کوونکے - (عموماً د معشوقې په صفت کښې راځي) - (۲) چالاک - بې باکه- (۳) بې حيا - ګستاخ سپين سترګې-

چې بـــوســـه لـــه ياره غواړي بې اودسه
خدا ے دې نۀ کاندې رحمان دا هسې شوخ (رحمان بابا)

(۴) تېز (رنګ) ګور رنګ - (۵) ډېر اثروالا - اثر ناک - ژور -

ډېر غمونه شوخ شوخ شته دے په جهان کښې
ولې نـــۀ لکـــه هـــجـــران دا هسې شوخ (رحمان بابا)

(۲) وران کارے -

چې يوسف ئې د دنيا پـه قباع ورکړ
پيدا مه شه بل کاروان د هسې شوخ (رحمان بابا)

**ـــــ چشم**:- (چَ/چِ+ش+م) (ف تر - صف ، مو - ه) بې باکه سترګو واله چې په سترګو کښې ئې حيا نۀ وي - بې باکه - بدلحاظه - ګستاخه -

پروانه غوندې خولۀ پټه خپل سر سېځه
د سپند په څېر شوخ چشم رسوا مه شه (حميد)

**ـــــ چشمي**:- (څَ/چِ+ش+مي) (ف تر - اس - مو) بې باکي ،- بې حياۍ - سپين سترګتوب - ګستاخي -

حق د دوستۍ دا وۀ چې په دواړو سترګو ړوند وے
دا څـــۀ شوخ چشمي ده چې لاغټ ګـــورم بينـــا يم (حميد)

**ـــــ چشمي کول**:- د بې باکۍ نه کار اخستل - بد لحاظي کول - بې حياۍ کول - ګستاخي کول -
**ـــــ رنګ**:-(رَ+ن+ګ) تېز رنګ - (د تت يا د پيکه رنګ په مقابله کښې) -
**ـــــ طبع**:-(طَ+بَ+ع) (ف تر - صف ، مذ مو) هغه کس چې په طبيعت يا مزاج عادت کښې ئې شوخي او بې باکي وي - خوش طبع - خوش اروا - (ح) ټوقې ټقالې کوونکے -
**ـــــ طبيعته**:- (طَ+بي+عَ+تَ) (و------ شوخ طبع)
**ـــــ کاته**:-ډېر په تېز نظر کاتۀ - ځير ځير کاتۀ -

هـغـه ګـل تـه شوخ کاتۀ بې ادبي ده
چې له سهمه د نسيم په ګذار نۀ شي

**ـــــ مزاجه**:- (مِ+زا+جَ) (و------ شوخ طبع)
**شوخترے** :-(شو+خ+تَ+رَے) (اس - مذ ، ج - ي) جګړه مار - جنګيالے -

مشت و ګرېوان درسره ننبتے دے د يار پـــه ورۀ کښې
په شپې رقيب غوندې بې شرمه شوختري پېښ مه شې (حسين)

**شوخي** :- (شو+خي) (اس - مو) (۱) بې باکي - ټوقې ټقالې کوونه - کوش اروائي - (۲) د رنګ تېز والے - (۳) ګستاخي - بې حيائي -

په پېرۍ کښې بدکاري هسې شوخي ده
کـــه پـــاخي ځوک تر تخت لاندې مواس (حميد)

**شوخے** :- (شو+خے) د شوخه جمع مؤنث صيغه - تېزې - بې باکے - بې حيا -
**ـــــ سترګې**:- بې باکه سترګې - بې حيا سترګې -

شرموي مې شوخې سترګې تر تا پورې
چې دې مخ د نظر کـــرم سپړے سپړے (حميد)

**شودان** :- (شَو+دا+ن) (اق ، اس ، مذ ، ج - ونه) لوېږنده (کنتر) - سلے (جدران)-
**شودانه** :- (شو+دا+نَ) (ق ، اس - مو ، ج - نې) د ماشومانو نرم تندے - شوانه -
**شودپۍ** :- (شو+د+پَ+ۍ) (ق - اس -مو) (۱) يوه برګه - مرغۍ - (۲) يو قسم وابنۀ چې پۍ شان ترې راووځي -
**شودر** :- (شُو+د+ر) (ه - اس - ج - ان - مو - ه) (۱) د هندوانو په څلور قسمه ذاتونو کښې د ټولو نه د کمې او پربوتې درجې خلق چې د اوچتو درجو هندوان ورته ډېر سپک ګوري - تر دې چې ورسره د بدن جنګېدل (لاس لګول) هم يوه لويه ګناه ګڼي -(۲) کم ذاته خلق - چوړيان- بنګيان وغېره -
**شودنيځ** :- (شو+د+ني+(د)+ز) (و------ شوديز)
**شودپوئي** :- (شو+دو+پ+وَ+ئ) (اق ، پ تر - اس - مو) يو قسم سپين نرم کاڼے - سپينه تېږه -
**شوده** :- (شَو+د) (اس جم) پۍ - شير -
**شوده** :- (شو+دَ) (اس - مذ ، ج - ګان) (۱) کم عقل - ناپوهه - (۲) بدمعاش - لُوچه - (ظفر) -
**شوده مار** :- (شو+دَ+ما+ر) (پ تر ، اس - مذ ، ج - ان) د مارانو يو قسم چې نرے او سپين وي - (ب ق) -
**شودے** :- (شو+دے) (اس - جم) پۍ - شودۀ -

چې ګمان دې نفس د خوي کړي له صوفيانو
د سرګين مـــزه مـــونده شي په شودو کښې (سعيد)

**شوديارہ** :-(شُو+د+يا+رَ) (اس -مو ، ج - رې) شدياره - هغه زمکه چې اړولے شوے وي
**شوديا کۍ** :-(شو+د+يا+کَ+ۍ) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيله نوم چې د بومي خېلو څانګه ده او بومي خېل ، نصردين ، کالو خېل ، احمدزئي ، درويش خېل وزير دي -
**شودي خېل** :- (شو+دي+خېل) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د غالب خېلو څانګه ده او غالب خېل ، بدي زي ، شمن خېل محسود دي - (بله شجره کښې د غالب خېلو په ځا ے لوپ خېل ليکلے دے) -
**شودي خېل** :- (دغه) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د غلام خېلو څانګه ده او غلام خېل ، علي کاکاخېل ، بوسۍ ، نصرۍ ، کالو خېل ، احمد زے ، درويش خېل وزير دي - (د شمسي خېل تر لاندې نوټ وګورئ) -
**شوديز** :- (شَو+دي+ز) (اس - صف مذ ، مو - ه) شودو سره تعلق لرونکے - پېوته منسوب -
**شوډنګ** :- (شو+ډَ+ن+ګ) (اس - مذ ، ج - ان) (۱) خرډک - کم عقل - شوده (۲) تومت - سخت تومت چې د شرمندګۍ باعث وي - تهمت - تور -
**شور** :- (شو+ر) (ف ، اس - ج - ونه) (۱) اوچت اواز - چغې - نعرې سورې - زوږ غاؤ (خصوصاً چې د ګڼو کسانو وي) -(۲) هر قسم اوچت او تېز اواز چې په غوږونو بدلګي - لکه د هوائي جهازونو ، موټرو لارو ، د کارخانو ، د کارغانو اوازونه وغېره(۳) شکايت - (۴) جنګ جګړه - لکه فلانې سره مې شور کړے دے (۵) د جنګ جګړې اوازونه - د هنګامې اوازونه - د

هلي ګولي چغې سورې۔

ـــــ **انګېز**:۔ (اَن+ګې+ز) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ، ه) (۱) شور پېدا کوونکے۔ شور پورته کوونکے۔

ملامت چې صباحت سره امېز شي

د دلبرو حسن هاله شور انګېز شي (خوشحال)

(۲) شر يا جنګ جګړه جوړوونکے۔ هنګامه۔ پورته کوونکے۔ هله ګوله جوړوونکے۔

شور انګېز مخ راښکاره کړه نن تـر پـلو لړ

چې له خلق مې غوږ کاږه کا د زړهٔ شور مې (سعيد)

ـــــ **انګېزي**:۔ (اَ+ن+ګې+زي) (ف۔اس۔مو) (۱) زوږ۔هاو هو جوړونه۔ (۲) جنګ جګړه پېدا کوونه۔ هنګامه جوړول۔ هله ګوله جوړول۔

ـــــ **پکړ**:۔ (پَ+ک+ړ) (فپ تر۔اس۔مذ) زوږ۔ چغې۔ نعرې سورې۔ (پکړ اصلاً د هندۍ د پکړ نه اخيستے شوے دے۔ لکه چې غل پسې شور جوړ کړے شي چې پکړو پکړو)۔

ـــــ **پکړ جوړول**:۔ شور زوږ پورته کـول چې وهلـې وے نيسـې۔ (غـل دے ـــ وغېره)۔ شور فرياد کول۔ نعرې سورې شوروکول۔

ـــــ **چشم**:۔ (ف تر ۔صف ، مذ ، مو ۔ ه) هغه سړے چې بد نظر ئې لګي۔

ـــــ **دے**:۔ د شور اواز دے۔ د ګڼو کسانو په زور زوره د خبرو کولو اواز راځي۔ د چا د جنګ جګړې اواز دے څهٔ هنګامه ده۔ څهٔ هله ګُوله ده۔

ـــــ **شار**:۔ (شا+ر) (فپ تر ۔اس۔ج۔ونه) د "شار" غالباً چې د "شر" نه جوړ شوے دے چې د فارسۍ ترکيب "شوروشر" کښې راځي۔ بيا د شور تابع مهمل دے چې د شور په معنٰی کښې تاکيد او زياتوالے پېدا کوي۔ ډېر شور ۔لوے شور زوږ۔ هاؤ هو نارې سُورې۔ هله ګُوله۔ هنګامه۔

ـــــ **شر**:۔ (وـــــ شور شار)

چې له شور و شره خلاص دي مردګان دي

د ژونـد يـو چې شـور نـهٔ وي هم هېڅ (خوشحال)

ـــــ **شغرب**:۔ (شَ+غ+رَ+ب) (شغرب د "شغب" بدل شکل دے)۔ (وـــ شور شغب)۔

ـــــ **کول**:۔ (۱) چغې وباسل۔ نعرې سورې وهل۔ زوږ کول۔ غاو جوړول۔ په زوره زوره خبره کول ، غورېڅ کول (۲) (چاسره) جنګ جګړه کول۔ خپړې لګول۔ (۳) شکايت کول۔ (۴) په شور سره خلق خبرول۔

لړ ادب و غماز ورکړه خداے د پاره

چې کـوي درسره هومره شور په څهٔ (حميد)

ـــــ **کېدل**:۔ (مص) (۱) د نعرو سورو اواز راتلل۔ زوږ غاو جوړول (۲) جنګ جګړه کېدل۔

ـــــ **ګډول**:۔ شور شر جوړول۔ په چغو خلق خبروول۔

شور د ګـــډ کړ په وګړي

صبر ورونے شور و شر ئې (خوشحال)

ـــــ **ماشور**:۔ (ما+شو+ر) (پ تر ۔اس۔مذ ، ج۔ونه) شور شار۔ شور و غوغا۔

ـــــ **محشر**:۔ (مَ+ح+شَ+ر) (عف تر ۔اس۔مذ) د قيامت د ورځې شور۔ مجازاً ډېر زيات شور زوږ۔ ډېره شور غوغا۔ (لکه چې قيامت جوړ وي)۔

ـــــ **وبګېږ**:۔ (رو) بَ+ګَ+ړ) (پ تر ۔اس۔مذ ، ج۔ونه) شـور ماشــور۔شـور غوغا۔

ـــــ **وشر**:۔(رو)+شَ+ر) (ف تر ۔اس۔مذ) هغه شر چې شور غوغا هم ورسره شامله وي۔ فساد۔

چې دا هسې ئې پېرے کړلے بنياد ے

د فلک په سر کښې شته څهٔ شور و شر (خوشحال)

ـــــ **وشغب**:۔ (رو)+شَ+غ+ب) (ف تر ۔اس۔مذ ، ج۔ونه) (۱) پښتو کښې عموماً شور شغب استعمالېږي۔ ډېر شور ۔نعرې سورې۔ هاؤ و هو۔ چغې زوږ (۲) هله ګله۔ هنګامه۔

ـــــ **وغل**:۔(رو)+غُ+ل) (وـــــ شور شار)

**شور** :۔ (شو+ر) (ف۔اس۔مذ) شوره۔ ښوره۔ ښورې والـه زمکـه يـا اوبـهٔ ۔ ترخې اوبهٔ۔ مالګينې اوبهٔ۔

کور لقوي ته که طبيب کښېنوې کور پاتې شي

تاروهٔ کوهي ته که نابات واچوې شور پاتې شي (حافظ)

**شورابه** :۔ (شو+را+بَ) (ف تر ۔اس۔مو ، ج ۔ے) (۱) شورې واله اوبهٔ۔ نمکينې۔ مالګينې ترخې اوبهٔ (۲) هغه زمکه يا علاقه چې اوبهٔ ئې شوره ناکې وي۔ يعني مالګينې يا تورې ترخې وي۔

**شورش** :۔ (شـو+ر+ش) (ف۔اس۔مـذ ، ج۔ونه) (۱) شور و شر۔ فساد ۔جنګ جګړه (۲) هلَه ګُوله۔ هنګامه۔ (۳) بغاوت۔

ـــــ **برپا کول**:۔ (۱) جنګ جګړه جوړول۔ فساد پورته کـول۔(۲) نافرماني او بغاوت جوړول۔

ـــــ **برپا کېدل**:۔(۱) جنګ جګړه جوړېدل۔ فساد جوړېدل۔ (۲) بغاوت او نافرماني شروع کېدل۔

**شورکۍ** :۔ (شو+رَ+کَ+ۍ) (اس۔مو) د غره ښارو۔ ښورکۍ۔ خورکۍ۔ غرئيزه خارو۔ خاروڼې۔ مينا ۔ شارکه۔ زرګره۔ ګل خرېنکه۔ (ظفر)۔

**شورکے** :۔ (شُو+ر+کے) (اس۔مذ ، ج۔کي) هغه مسلسل اواز چې د اوبو د راغورځېدو نه پېدا کېږي۔ شړار۔

**شورند/ښورند** :۔ (شـو+رَ+ن) (پ۔اس۔صف) ښـورېدونکے۔ خوځېدونکے۔ ګرځېدونکے۔

**شورا ۱** :۔ (شو+رو) (اس۔مو ،۔ج۔ګاني) د چارشنبې ورځ۔ (اردو بدھ)

**شورو ۲** :۔ (شو+رو) (اس۔مو ، ج۔ګاني) د "شرع" پښتو تلفظ۔ اغاز۔ ابتدا۔ اول سر۔

ـــــ **کول**:۔ اغاز کول۔ ابتدا کول۔ په کار وغېره لاس پورې کول۔

ـــــ **کېدل**:۔ (۱) ابتدا کېدل۔ اغاز کول۔ په څهٔ کار لاس پورې کېدل۔ (۲) راسر کېدل۔ لګيا کېدل۔ (لکه راتلو سره په کنځلو ورته شورو شو)۔

**په ـــــ کښې**: په اغاز کښې۔ په ابتدا کښې۔ په اول سر کښې۔ په وړومبي سر کښې

**په شورو ـــــ کښې**:۔ (وـــــ په شورو کښې)

**د ـــــ نه**: د اول سر نه۔ د ابتداء نه۔ د وړومبي سر نه۔ د اغاز نه۔

**شوروا** / ښوروا :۔ (شـو+ر+وا) (اس۔مـو ، ج ۔ګـاني) ښـوروا ۔خـوروا ۔شـېروا۔ شُروا۔ د پخ کړې غوښې اوبه۔ د غوښې د انګولې اوبهٔ۔ (چې نوري (نمړي) په کښې چُوکه کوي۔ يعني لونده۔ او نرمه وي يا ډوډۍ په کښې ماتوي)۔

**شورول/ښورول** :۔ (شو+رَ+ؤ+ل) (مص مت) خوځول۔ حرکت ورکول۔

**شورولے/ښورولے** :۔ (شـو+رَ+ؤ+لَے) (اس۔مـف ، ج۔لـي) خوځـولے۔ متحـرک شوے۔

**شورونګ/ښورونګ** :۔(شو+رَ+ؤ+ن+ګ) (ق۔حمص) (وـــــ شورونه)

**شورونه/ښورونه** :۔ (شو+رَ+ؤ+نَ) (حمص) خوځونه۔ حرکت ورکونه۔

**شوروونکے/ښوروونکے** :۔ (شـو+رَ+وُ+ن+کَے) (اس فا ۔ج۔کـي) خوځـوونکے۔ حرکت ورکوونکے په حرکت کښې راوستونکے۔

**شوره** :۔ (شو+رَ) (اس۔مو ج۔رې) ښوره۔ خوره۔ يوه سپين شان مرکب دے چې پـه خونـد مـالګين۔ تريـو (او تـريخ) وي۔ د ټوپـک پـه دارو کښـې استعمالېږي۔ د اوبو د پخولو د پاره هم پکارولے شي۔

ـــــ **پخ**:۔ (پ+خ) (صف۔مذ ، مو۔ه) (۱) هغه کس چې په نه څهٔ خبره شور جوړ

وي ډېر شور کوونکې - (۲) جګړ مار - سرتېزه - جنګالی - (دا په اصل کښې د "شوره پشت" بدل شکل دے - په فارسي کښې ددې لفظ معنیٰ شوخ ده) -

**ـــ پشت**:- (پ+ش+ت) (ف تر - صف ، مذ ، مو - ه) (وـــ شوره پخ) -

**ـــ زمکه**:- (ز+م+کَ) (فپ تر - اس - مو ، ج - کې) ښوره زمکه - هغه زمکه چې ښوره پکښې پیدا کېږي - داسې زمکه کښې کر کرونده نۀ شي کېدے -

**ـــ ګر**:- (ګ+ر) (اس ، فا ، ج - ان ، مو - ه) شوره (ښوره) جوړوونکے - شوره تیارَوونکے -

**شورهار** :- (شو+رَ+ها+ر) [اس صوت - مذ] شغهار - د شر شر یا د شغ شغ اواز - چې و برښي سپینـکی.

د لنډ پریو شور هار شي (خوشحال)

**شوریٰ** :- (شُو+را) (ع - اس - مو ، ج - ګانې) صلاح - مصلحت - مشوره.

**مجلس د ـــ**:- (مَ+جَ+ل+س+د) (عف تر - اس مذ) هغه مجلس یا ډله د څۀ مصلحت یا مشورې د پاره مقرره شوې وي او وخت په وخت ددغې مقصد د پاره یو ځاے کېږي - مجلسِ شوریٰ - پارلیمنټ -

**شوري** :- (شو+ري) (صف - مذ ، مو) (۱) ډېر شور کوونکے - شور زوږ کوونکے - (۲) ډېر شر او جنګ جګړې کوونکے - (۳) ډېر شکایتونه کوونکے -

**شورے** :- (شو+رے) (فپ تر) د "شوره" اضافي یا مجروري شکل دے -

**د ـــ اوبۀ**:- هغه اوبۀ چې شورې په ذریعه یخې کړے شوې وي -

**د ـــ تېزاب**:- (تې+زا+ب) هغه تېزاب چې د شورې نه جوړ کړے شوے وي -

**شـــوربدګي** :- (شـــو+ري+دَ+ګي) (ف - اس - مـــو) (۱) پرېشـــاني - حېرانتیـــا - لیونتوب - جنون (۲) (شعر) عشق - عاشقي - مئینتوب - مئېندېنه -

**شوربدل/ښوربدل** :- (شو+ري+د+ل) (مص لا خوځېدل - حرکت کول -

خـــلائق واړه چې دلتـــه شوري

زر به قرار شي د ګور تر سیوري (سعید)

**شوربدل/ښوربدل** :- (شـــو+ري+د+ل) (مـــص لا د اوبـــو وغېـــره (مسلســـل) راغورځېدل -

**شوربدلے/ښوربدلے** :-(شو+ري+د+لے) (اس مف ، ج - لي) خوځېدلے - خوځولے شوے - په حرکت کښې -

**شوربدلے/ښـــوربدلے** :-(شـــو+ري+د+لَے) (اس - مـــف ، ج - لـــي) راتـــوے شـــوے - راغورځېدلے (اوبۀ وغېره چې اواز هم ورسره وي) -

**شوربدنګ/ښوربدنګ** :- (شو+ري+دَ+ن+ګ) [ق - حمص] (وـــ شوربدنه)

**شوربدنګ/ښوربدنګ** :- (شو+ري+دَ+ن+ګ) [ق - حمص] (وـــ شوربدنه)

**شوربدنه/ښوربدنه** :- (شو+ري+د+نَ) (حمص) خوځېدنه - حرکت کوونه -

**شوربدنه** :- (شو+ري+د+نَ) (حمص) د اوبو وغېره د بره نه راتوئېدنه - (چې اواز هم ورسره وي) - د ابشار راغورځېدنه -

**شوربدونکے/ښوربدونکے** :- (شو+ري+دُو+ن+کے) (اس فا - ج - کي) خوځېدونکے - حرکت کوونکے - متحرک -

**شوربدونکے** :- (شو+ري+دُو+ن+کے) (اس - فا ، ج - کي) راتوے کېدونکے - (اوبۀ سره د اوازه) راغورځېدونکے (ابشار وغېره) -

**شوربده** :-(شو+ري+دَ) (ف - صف ، مذ ، مو) (۱) پرېشان - حېران - پرېشان حالا - (۲) لیونے - مجنون -

چې له عشق له درده سوځه شوربده شي

د ارام صـــبر جـــامـــه ئې پـــاربـــده شي (حافظ)

(۳) (شعر) عاشق - مئین -

**ـــ بخت**:- (بَ+خ+ت) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) بد نصیبه - بدبخته -

**ـــ حال**:-(حا+ل) (ف - تر - صف ، مذ ، مو - ه) (۱) پرېشانه حال - بدحال - په بده ورخ - (۲) لیونے - مجنون -

**ـــ خاطر**:- (خا+ط+ر) (ف تر - صف ، مذ ، مو - ه) د پرېشانه زړۀ واله چې زړۀ ئې پرېشانه وي - چې زړۀ ئې جمع نۀ وي -

**ـــ دل**:- (وـــ شوربده خاطر)

د صحرا اوسی ارام په مېړتون که

ورکـــوي شـــوربـــده دل لره آرام (حمید)

**ـــ رائے**:-(را+ئے) (ف - تر - صف) هغه کس چې رائے ئې درسته نۀ وي - بدې رائے واله - لېونے - مجنون -

**ـــ سر**:-(س+َر) (ف تر - صف ، مذ ، مو - ه) (۱) چې دماغ ئې پرېشان ه وي - حېران و پرېشان - په بد حال - پرېشان حاله - (۲) لیونے - مجنون -

**ـــ سري**:- (س+َري) (ف تـــر - اس - مـــو)(۱) د دمـــاغ پرېشـــاني - حېرانـــي و پرېشاني - پرېشان حالي -(۲) لیونتوب - جنون -

**ـــ مغز**:- (مَ+غ+ز) (وــــــ شوربده سر)

**شوربدۀ/ښوربدۀ** :- (شو+ري+د) [حمص] خوځېده - شوربدنه -

**شوړ** :- شو+ړ) (صف - مذ ، مو - ه) چوین سترګې - خوړین سترګې -

**شوړ** :- (شو+ړ) (صف - مذ ، مو - ه) بې هنره - بې سلیقې - شاړ - شډل -

کښبوت علي خان په هسې شوړ وخونه چوړو

ورلـــه ئې زده نـــۀ وه پـــرې ئې لـــور د شماوه (علي خان)

**ـــ پوړ**:-(پو+ړ) (صف - مذ ، مو - شوړه پوړه) (۱) بالکل شاړ - بالکل بنجر او غېر اباد - (۲) شاړ شپاړ - جټ - جاهل -

**شوړ** :- (شُو+ړ) (اس صوت) د اوبو د بره نه د راغورځېدو اواز - شورکے -

**شوړ** :- (شُو+ړ) (اس - مذ ، ج - ونه) د اوبو چایو شربت ګوټ - د ساه راښکلو سره اخستل -

**ـــ کول**:- چاے وغېره د شوړ شوړ په طریقه څښکلې - یعنې ساه راښکلو سره ګوټ اخیستل -

**شوړاتوت** :- (شو+ړا+تُو+ت) (اس - مذ ، ج - ان) د توت یو قسم -

**شوړاپي** :- (شو+ړا+پي) (ق - اس - مذ) قیف - پیک - کېپ -

**شوړتک** :- (شُو+ړ+ت+ک) (صف - مذ ، مو - ه) هغه ټوکې (کپړه) چې سستــه پسته او دلې شوې وي -

**شوړخې** :- (شو+ړ+خَې) (اس - مذ ، ج - خي) یو قسم غټ د پشمینې ټوکې - چې لکه د شړۍ یا د خورجین وي -

**شوړ شوړۍ** :- (شُو+ړ+شو+ړَ+ی) (اس - مو) چوړچوړۍ - ټوټکه - د اتشبازۍ یو څیز دے -

**شوړک** :- (شو+ړ+ک) (ق - اس - مذ) د قرع اندازۍ (پچه ایستلو) یو طریقه چې ماشومان د ګوټو په ښودلو وباسي - د هرې ګوټې د پاره بېل نوم مقرر شوے وي -

**شوړکے** :- (شُو+ړ+کَے) (وـــ شوړکے)

**شوړګے** :- (شـو+ړ+ګے) (اس - مذ ، ج ، ګي)(۱) لنګرې - بغرۍ - (۲)د شوملو د شاربلو(ځروولو) لوښے - دوښۍ -

**شوړمبے** :- (شو+ړ+م+بے) (اس - جم) شوملې - شړومبے - شنوبے -

**شوړول** :- (شُو+ړَ+ؤ+ل) (مص)(۱) راتویول - رابیول (چې اواز هم ورسره وي) (۲) د خولې پوکي سره اوبۀ په حرکت کښې راوستل -(۳) د شاړول بدل شکل - (وـــ شاړل)

**شوړولے** :- (شـو+ړَ+ؤ+لَے) (اس مف - ج - لي) (۱) تـوے کـړې - رابیـولے - (اوبۀ وغېره اواز هم ورسره وي) - په پوکي سره (اوبۀ) خوځولے - (۲) شاړ کړے -

**شوړونګ** :- (شو+ړَ+وَ+ن+ګ) [ق - حمص] (وـــ شوړونه)

**شوړونه** :-(شو+ړَ+ؤ+نَ) [حمص] (۱) راتویه ونه - د اوبو راغورځونه - (چې اواز

هم ورسره وي) -(۲) په پوکي سره د اوبو خوځونه -(۳) شاړونه -بنجر کوونه -

**شـــوړوونکے** :- (شـــو+ړَ+وُو+ن+کے) (اس-فـــاع-ج-کـــي) (۱) راتویــوونکے -راغورځوونکے - (اوبهٔ وغیره چې اواز هم ورسره وي) -(۲) په پوکي سره (اوبهٔ) خوځوونکے - (۳) شاړوونکے -بنجر کوونکے -

**شوړه** :- (شو+ړَ) (اس-مو ، ج-ړې) (۱) بُوجه -د بوتل وغیره د خولې د بندولو د پاره څهٔ څیز چې وښو یا د چېړې وغیره نه جوړ شوے وي

چې د تا د عیب جوی خبرې کاندي

خولهٔ د هغه شـه د غم په شوړه چپه

(۲) غتېه لوړي -غتېه نمړي یا مړي -(۳) د وښو وغیره نه جوړ شوے داسې څیز چې لوښو د صفا کولو د پاره پکارولے شي -

**ـــــ خوله کښې ورکول** :- خوله وربند ول -د غصې په حالت کښې څوک چپ کول -د چا قهر یخول -

**ـــــ ورکول** :- (۱) بُوجه ورکول -خوله بندول -(۲) د لوښو د وینځلو په وخت لوښې شوړې سره صفا کول -(دې شوړې سره د لوښي غوړ لرې کولے شي) -

**شوړه** :- (شو+ړَ) (اس-مو ، ج-ړې) حمله -یرغل -برید -

**شوړه** :- (شُو+ړَ) (ق ، اس-مو ، ج-ړې) (۱) د جوارو د توکې ریږه - یعني هغه پشم شان کوم چې د جوارو وږي په سر کښې وي (۲) د باجرې وږے یا خوشه -

**شوړي** :- (شُو+ړي) (صف-مذ ، مو-ئ) چوپن سترګې -

**شوړے** :- (شو+ړے) (اس-ج) د شوړه جمع دے -

**ـــــ وهل** :- غټې غټې نوړي، خولهٔ کښې اچول -د غټو غټو نمړو خوراک کول -

**شوړېدل** :- (شـو+ړې+د+ل) (مص لا) (۱) د اوبـو بـره نـه اواز سـره راتوئېـدل -(۲) شاړ کېدل -شړېدل -بنجر کېدل -(۳) پوکي سره په اوبو کښې حرکت پیدا کېدل

**شوړېدلے** :-(شُو+ړې+د+لَے) (اس مف ، ج-لي) (۱) راتوے شوے -(۲) د خولې په پُوکي (د اوبو وغیره مائع څیز) خوځېدلے -(۳) شړ کړے شوے -بنجرے شوے یا بنجرے کړے -

**شوړېدنګ** :- (شُو+ړې+دَ+ن+ګ) [ق-حمص] (و------ شوړېدنه)

**شوړېدنه** :- (شُـــو+ړې+د+نَ) (حمـــص) (۱) راتوئېدنـــه -(د اوبـــو وغیـــره) یـــا غورځېدنه (چې اواز هم ورسره وي) -(۲) د خولې په پوکي سره د اوبو خوځېدنه -

**شـوړېدونکے** :- (شُـو+ړې+دُو+ن+کَے) (اس-فا-ج-کـي)(۱) رتوئېـدونکے -(۲) د پوکي په زور خوځېدونکے -(۳) شړ کېدونکے -

**شوش** :- (شو+ش) [اس-مذ] (و----- شوشک)

**شوشک** :- (شـو+شَ+ک) (اس-مـذ ، ج-ونـه) (۱) ډاټ -محراب -(۲) (ق) د کـور مخې ته دیوې ستنې برانډه یا دالان چې په عربۍ کښې ورتـه (واق وائـي) شَشک -

**شوشه** :- (شـو+شَ) [ف-مـو ، ج-شوشې] (۱) ذره -بخرے -ریزه -وړه شان ټکړه (۲) څهٔ نوې او عجیبه غوندې خبره (۳) وړوکے شان علامت -د (ه) هغه علامت چې په نستعلیق خط کښې د "مد" د لاندې ورکولے شي -لکه: هوشیار (۴) د "س" او د "ش" د تورو غاښے -(۵) د تورو څهٔ وړوکے شان علامت -

**ـــــ پر ښنودل** :- څهٔ نوې خبره د ځانه جوړول -څهٔ دروغ خبره د ځانه ایجادول (او خورول) -

**شوشی** :- (شـو+شَ+ی) (اس-مـو) (۱) نـیم سـوے سـکروټه -نـیم سـوځېدلے سکور -(۲) نیم سوے دړه یا لرګے -چې نیم سر ئې لابل نهٔ وي (۳) د ډکي سر چې په اور کښې بل شوے وي او لامبې شوے نهٔ وي -ماشومان دا په لاس کښې تاو وي او دائرې اور بلېږي -(۴) هغه لرګے چې په سر ئې اور بلېږي او د رڼا د پاره پکارولے شي -لکه وائي چې تاولې ورپسې شوشۍ لګولې ده -[وزیري: سَوَکړ]

**شوغ** :- (شُو+غ) [صف-مذ] کوږ -ناسم -کوږ شوے -ټېټ شوے -

چې لانـه دے د هجران رنـدوه خوړلے

هجري زړهٔ دې د بهار تر څنګه شوغ دے (هجري)

بیا بـه ورشې تر بلوغه

ته غافل مه شه اے شوغه (ارزاني)

**شوغړېدل** :- (شُو+غ+ړې+د+ل) (مص) په خوب کښې اړخونه بدله ول -ډډه په ډډه اوړېدل -

**شوغړېدنګ** :- (شُو+غ+ړې+د+ن+ګ) [ق-حمص] (و----- شوغړېدنه)

**شوغړېدنه** :- (شُو+غ+ړې+د+نَ) (حمص) ډډه په ډډه اوړېدنه -اړخونه بدلونه -(په خوب کښې) -

**شـوغړېدونکے** :- (شُـو+غ+ړې+دُو+ن+کے) (اس فـا-ج-کي) لـوټ پـه لـوټ اوړېدونکے -(په خوب کښې) ډډه په ډډه اوړېدونکے -

**شوغکه** :- (شُو+غ+کَ) (اس-مو ، ج-کې) د غنمو یا د اوربشو لشې -

**شُوغول** :- (شُو+غَ+وَ+ل) (مص مت) کږول -خم کول -

**شوغونګ** :- (شُو+غَ+ؤ+ن+ګ) [ق-حمص] (و------- شوغونه)

**شوغونه** :- (شُو+غَ+وَ+نَ) (حمص) کږونه -خم ورکوونه -ټېټوونه -

**شوغوونکے** :- (شُو+غَ+وُو+ن+کے) (اس فا ، ج-کي) کږوونکے -خم ورکوونکے -

**شوغه** :- (شُو+غَ) (اس-مو ، ج-غې) (۱) سخت او نېغ واله وښتهٔ -

(۲) چپن -چپن سترګې -چوخه -

**شوغه** :- (شُو+غَ) (اس-مو ، ج-غے) چوغه -چغه -

**شوغے** :- (شُو+غَے) (ق ، اس-مذ ، ج-ي) (۱) هغه ګډ چې په غوږو نو ئې سپین ټکي وي -(۲) هغه سړے چې رنګي، او لنډه ږیره لري -

**شوغېدل** :- (شُو+غې+د+ل) (مص) کږېدل -

**شوغېدنه** :- (شُو+غې+د+نَ) (حمص) کږېدنه -

**شوغېدونکے** :- (شُو+غې+دُ+ن+کَے) (فا-مذ ، ج-کي) کږېدُونکے -

**شوفر** :- (شو+ف+ر) (فر-اس-مذ ، مو-ه) د موټر ډرائیور -ډرېور -(خصوصاً د پرائیویټ ګاډي ډرېور) -

**شوق** :- (شَو+ق) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) خواهش -ارزو -د څهٔ کار د کولو یا لېدلو وغیره خواهش -رغبت -د زړهٔ خوښه یا دلچسپي -

**ـــــ پوره کول** :- په خپل شوق او د زړهٔ په خواهش څهٔ کار کول -

**ـــــ مند** :- (م+ن+د)

**ـــــ من** :- (مَ+ن) (اس-صف ، مذ ، مو-ه) شوق لرونکے -خواهش لرونکے -

**په ـــــ سره** :- په رغبت سره -په دلچسپۍ سره -د زړهٔ په مینه -د زړهٔ په خوښه -

**شوقدر** :- (شَو+قَ+د+ر) (اس-مذ ، ج-ونه) د "شبِ قدر" بدل شکل دے -په پینتنو کښې د شعبان د میاشتې د پنځلسم تاریخ شپه -

**شوقنه** :- (شـو+ق+ن+ړَ+) (اس-مـو ، ج-ړې) د شـوقي تانیـث دے -(۱) شـوق لرونکے -خواهش لرونکے -شوقمنده -(۲) د عشق بازۍ شوق لرونکے ښځه

**شـوقي** :- (شَـو+قي) (اس-مـذ ، ج-ان) شـوق لـرونکے -خـواهش لـرونکے -شوقمند -شوقین -

که شوقي وې زما د خولې

ګرانه په میل به ګډېدې (غاړه)

**شوقین** :- (شَو+قین+ن) (اس-مذ ، ج-ان) (و---- شوقي)
---- **مزاج**:- (م+زا+ج) (عف‌تر-صف ، مذ ، مو-ه) هغه سړے چې د ښځ او ښکلو څیزونو لکه جامه ، خوراک ، موسیقي وغیره سره مینه او رغبت لري-
**شوقیه** :- (شَو+قي+يَ) (عف-تف) هغه کار چې تش په خپل شوق ، رغبت یا خواهش کولے شي-یعني چې څۀ مجبوري یا پېشه ئې نۀ وي-لکه فلانے هسې شوقیه سندرې وائي-یعني پېشه ور سندر غاړے نۀ دے-
**شوک** :- (شَو+ک) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) ازغے-اغزے-خار

خوش الحانه بلبل نۀ ویني شوک د ګل له شوقه
زړۀ د مشتاق څـیرې تېرۀ خـــار د بېلتانۀ کا (حافظ)

**شوک** :- (شُو+ک) (صف-مذ ، مو-ه) شلېدلے-پرېکړے-څیرې-شوکېدلے-
---- **پوک**:- (-پوک) (صف-مذ ، مو-شوکه پوکه) رېښې رېښې-شلېدلې شلېدلې-تیکه تیکه-
---- **په شوک**:- (شو+ک) رېښې رېښې-څیرې وېرې-پاڼه پاڼه ذرې ذرې-
---- **په شوک کول**:- رېښې رېښې کول-بالکل شلول-تیکې تیکې کول-پاڼه پاڼه کول-

لـکه طفل پـه لاس د طفل
زما زړۀ کا شوک په شوک (رحمان بابا)

**شوک** :- (شُو+ک) (سابقه) د شوکه مخفف دے سابقې په طور استعمالېږي-
---- **مار**:- (ما+ر) (اس-مذ ، ج-آن) لاړه شوکوونکے-ډاکه مار-رهزن-
---- **ماره**:- (ما+رَ) (اس-مو ، ج-رې) د شوک مار تانیث دے-(و---- شوکمار)
---- **ماري**:-(ما+ري) شوکه کوونه-لاړ شوکوونه-رهزني-ډاکه ماري-
**شوکه** :- (شو+ک) (اس-مذ ، ج-ونه) غم-اندوه-افسوس-غمګین-
**شوکار** :- (شَو+کا+ر) [اس صف-مذ-ج-ان] سېټ-مالدار-هندو دکاندار-(دا د اُردو لفظ ساهو کار وران شکل دے)-
**شوکاره** :- (شُو+کا+رَ) (اس-مو ، ج-رې) نوکاره-د نوم خراش-یا زخم-
---- **کول**:- په نوک سره خراش لګول-نوک سره زخمي کول-
---- **کېدل**:- نوکاره لګېدل-نوک سره خراش یا زخم رسېدل-
**شوکان** :- (شو+کا+ن) (اق ، اس-مذ ، ج-ان) هندو-شوکار-
**شوکانړے** :- (شَو+کا+ن+ړے) (اس-مذ ، ج-ړي) (۱) (ق) هغه نرم کانړے چې ترېنه لوښي یا د سلېټ قلم (سلېټي پنسل) جوړولے شي (۲) هغه پوست کانړے چې د سفېده کارۍ د پاره پکارولے شي (ق)-(۳) د کاڼي هغه تخته شان چې ډوډۍ پرې پخولے شي (۴) یو قسم نرم کانړے چې د صابون په جوړولو کښې پکارلے شي (۵) د کاڼي هغه ټکړه چې د تنور موری پرې بندوولے شي-
**شوکت** :- (شَو+کَ+ت) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) (۱) شان-رعب داب-زور قوت-(عموماً شان سره یو ځاے راځي)-(۲) د مسلمانانو د نارینه ؤ او زنانه ؤ په نومونو کښې هم راځي-
**شوکول** :- (شُو+کَ+ؤ+ل) (مص مت) (۱) د چانه څۀ څیز په زور اخیستل (۲) د بوټي نه ګل یا مېوه را جدا کول-(۳) ډاکه اچول-د لاروو نه مال وغیره په زور اخیستل-
---- **رېږه**:- په څۀ خبره افسوس کول-

چې صبا شوکوې تۀ رېږه پېوسته
ولې نن په رېږه لاس نۀ کړې ورسته (حمید)

**شوکولې** :- (شُو+کَ+ؤ+لے) (اس مف ، ج-لي) (۱) هغه مېوه یا ګل وغیره چې د بوټي نه را جدا کړې شوې وي-نړولے (۲) هغه څیز چې د چانه په زور تر لاسه کړې وي-

**شوکونګ** :- (شُو+کَ+ؤ+ن+ګ) [ق-حمص] (و---- شوکونه)
**شوکونه** :- (شُو+کَ+ؤ+نَ) (حمص) (۱) د ونې بوټي نه ګل یا مېوه جدا کوونه (۲) څۀ څیز د چا نه په زور اخیسته-(۳) لوټنه-مال وغیره د چا نه په زور اخیستنه-لوټ کونه-
**شوکونکے** :- (شو+کَ+وُو+ن+کے) (اس-فا ج-کي) (۱) ګل یا مېوه د بوټي نه راجدا کوونکے (۲) د چا نه څۀ څیز په زور اخیستونکے (۳) ډاکه-شُوکه کوُونکے
**شوکه** :- (شُو+کَ) (اس-مو ، ج-کے) (۱) لوټ ماري-رهزني (۲) د بل نه څۀ څیز په زور شوکونه-لکه تۀ بس د ورو نه شوکې ته ناست ئې-
---- **کول**:- لاړه شوکوول-رهزني کول-ډاکه ماري کول-
---- **کېدل**:-لاړه شوکېدل-رهزني کېدل-ډاکه ماري کېدل-ډاکه اچولے کېدل-
**شوکېدل** :- (شُو+کې+د+ل) (مص لا) (۱) ګل یا مېوه وغیره د بوټي نه جدا کېدل-(۲) مال وغیره د چا نه په زور اخیستلے کېدل-لوټلے کېدل-
**شوکېدنګ** :- (شُو+کې+دَ+ن+ګ) [ق-حمص] (و---- شوکېدنه)
**شوکېدنه** :- (شُو+کې+د+نَ) (حمص) (۱) ګل یا مېوه وغیره د بوټي راجدا کېدنه-(۲) لوټ کېدنه-مال په زور اخیستلے کېدنه-
**شوکېدونکے** /ې:- (شُو+کې+دُو+ن+کے) (اس ، مف ، ج-کي) (۱) هغه ګل یا مېوه چې د ونې نه راجدا کېدونکې وي-(۲) لوټ کېدونکے-
**شوګر** :- (شُو+ګ+ر) (انګ-ر ، اس-جم) (۱) چیني-شکره-(۲) د ذیابیطس مرض
-
---- "**بودل**":- د ذیابیطس مرض "بودل"-
**شوګرد** :- (شو+ګ+ر+د) [اس-مذ] (و---- شاګرد)
**شوګه** :- (شُو+ګَ) (اس-مو) د وریژو (وریجو) یو قسم-
**شوګی** :- (شُو+ګ+ی) (اس مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم چې د توري خېلو څانګه ده او توري خېل ، ابراهیم خېل ، اتمان زئي ، درویش خېل وزیر دي
**شوګي خېل** :- (شو+ګي+خېل) (اس مع) د پښتنو قبیله ده چې د کټي خېلو څانګه ده او کټي خېل ، عمرخېل ، علي خېل ، خدرخېل ، مُهمت خېل ، اتمان زي ، درویش خېل وزیر دي-
**شول** :- (ش+ؤ+ل) (مص) (د کېدل جوړې مصدر دے ، یعني ځینې فعلونه د یو نه جوړېږي او ځینې د بل نه)-(۱) واقع کېدل-لکه: یو ورځ داسې وشول چې ------ ، -(۲) پېښېدل-لکه: څۀ درباندې وشول-(۳) تېرېدل-لکه: شل کاله (ئې) وشول چې ----- ، -(۴) وربدل-لکه: سخ کال ډېر بارانونه وشول- (۵) قوت لرل-لکه: زۀ دا نۀ شم کولے-(۶) پیدا کېدل-زرغونېدل-دا ځل ډېر غنم شوي دي-(۷) زېږېدل-د هغۀ زوے شوے دے-
**شـول** :- (ش+ؤ+ل) (شُ+ل) (لاحقه) د ماضي فعلونو د جمع غائب د صېغې د جوړولو د پاره پکارولے شي-لکه خفه شول-روان شول-
**شول** :- (ش+ل) (صف-مذ ، مو-ه) هغه کس چې لاس و پښې ئې بېکاره وي-
---- **کېدل**:-لاس بېکاره کېدل-لاس شل/شَیَل کېدل-

هیچېرې د شـــولـــو سـرې بـــرکت نــۀ وي
شل شي شول شي شوم شي چې همېش شولې کرینه (خوشحال)

---- **وشل**:-(لو+شَ+ل) (صف ، مذ ، مو-شوله و شله) هغه کس چې هم ئې لاسونه بېکاره او هم ئې پښې شیَلې وي-د لاس و پښو نه بېکاره-شَل و شوټ-

زۀ رحمان بې یـــار هسې شول و شَل یم
لکه کب چې بې محیط شول و شل شي (رحمان بابا)

**شول** :- (شو+ل) (صف-مذ) نامراد-بدقسمته-(عموماً ، د "شوله" په شکل کښې راځي) -اوزيري : شول ، شے شول خوړل ، خوراک ، ميوه يا بل شے شول خوړل ، پوره شخوند نهٔ پرې وهل ]

شوله ! د زړهٔ کرکه دې وشه
زهٔ درته ژاړم ستا خندا راپورې شينه (ټپه)

**شول** :- (شُو+ل) (ق ، صف-مذ ، مو-ه) سخت څيز-درشت څيز-

**شول** :- (شُو+ل) (اس-مذ ، ج-ونه) درد-خوږ-شوله-

شپه او ورځ ئې قرار نهٔ شي
چې ئې شول د ګېډې وشي (صديق طبب)

**شولان** :- (شو+لا+ن) (اس-مذ ، ج-ان) (۱) شولې-شوله-غټې وريژې چې په کښې مايان او غوښه اچولے شولے وي-(۲) د ښهٔ خوراکونو په معنیٰ هم راغلے دے -

چې ئې په ظلم خوري واړه ئې زهر شه
ک٠ شـــولانونـــه د ســـلطان خوري (خوشحال)

ورې تږې د مـــاړهٔ درومي لـه خواته
د بخشش شولان د تل شام و سحر شو (مصري خان)

(۳) انګولے-سالن-پخکړے-

شولانونه وهل :- خوراکونه خوړل-طعامونه خوړل-

**شولپيے** :-(شو+ل+پ+م+يے) (ق ، اس-مذ ، ج-بي) د شولو ميده بوس-

**شولتکے** :- (شو+ل+ت+کَے) (اس-مذ ، ج-کي) پوستکے-د بدن څرمن-

**ـــــ ايستل/اباسل/ويستل**:-څرمن ايستل-پوست ايستل-پوستکے ايستل اباسل وغيره-مجازاً ډېر زيات وهل-د بوسو سخے جوړول-

**شولخ** :- (شو+لَ+خ) (اس-مذ ، ج-ونه) (۱) ستغ والے-د ژبې (جبې) يا د څرمنې -(۲) پوست-څرمن-

**ـــــ ايستل/اباسل/ويستل**:-څرمن ايستل اباسل (وغيره) -پوست ايستل اباسل (وغيره) -مجازاً ډېر زيات وهل-د بوسو سخے جوړول-

**ـــــ ايستل ، اباسل ، ويستل**:-(و-------- شولګ ايستل/اباسل/ويستل)

**ـــــ ختل ، د خولې**:-مجازاً ډېرې زياتې خبرې (نصيحت وغيره) کول چې خبرو ځان ستړے کول-سر نغرے کول-(و---- شولګ ختل)-

**شولکه** :- (شو+ل+کَ) (اس-مو ، ج-کے) جوکه-جوره-ژوره-

**شولکے** :- (شو+ل+کَے) (ق ، اس-مذ ، ج-کي) د وړو هلکانو د جاکټ يو قسم-

**شولګ** :- (شو+لَ+) (اس-مذ ، ج-ونه) څرمن-پوستکے-پوست-شولخ-

**ـــــ ايستل/اباسل/ويستل**:-څرمن ايستل اباسل وغيره-پوستکے ايستل اباسل وغيره-مجازاً ډېر زيات وهل ډبول-د بوسو سخے جوړول-

**ـــــ ختل ، د خولې**:-څرمن ختل ، پوست ختل ، څرمن الوتل ، مجازاً ډېرې زياتې خبرې (نصيحت وغيره) کول-په خبرو ځان ستړے کول-سر نغرے کول-

اثـــرې نـــهٔ کاندې ښېرې پـــه ويجاړ وګړي
که مې چاته په وئيل د خولې شولګ و خېژي (حافظ)

**شولګ** :- (شُو+لَ+ګ) (ق ، اس-مذ ، ج-ونه) جامه-ژامه-

**شولګړه** :- (شو+ل+ګ+رَ) (اس-مو ، ج-رې) هغه زمکه چې اوبهٔ ئې ډېرې وي او شولې په کښې کرلے کېږي-شال زار-شالي داره زمکه-

**شولمبکه** :-(شو+لَ+م+ن+کَ) (اس-مو ، ج-کے) يو ځنګلي بوټے چې ډانډے نهٔ لري-پره داري پلنې پاڼې لري او رنګ ئې سپين شان وي-

**شولو** :- (شُ+لو) (و-------- شڼهٔ)

**شولوابنهٔ** :-(شو+ل+وا+خ/ش) (اس جم) د شولو بوس-دروزه-پلاله-

**شوله** :- (ش+وَ+لَ) (اس-مو ، ج-شولې) د اسونو وغيره د نوکونو پرې کولو اله -د اسونو نوک تراش-

**شوله** :- (شو+لَ) (اس-مؤ) (۱) درد-خوږ-د درد څړيکه-

په هر بيت ئې هسې رنګ شولې ورپاسي
لـــکـــه زېـــړې پـــه ډېـــر درد سره اطفال (خوشحال)

(۲) د ګېډې سخت درد-د قولنج درد (۳) غم-اندوه-

**ـــــ د زړهٔ**:-درد دل-د زړهٔ خوږ-

**شوله** :- (شو+لَ) (ق-حرف) (۱) د تخاطب يوه کلمه ده چې د ښېرې نه اګاهو استعمالېږي-لکه شوله ځواني مرګ شې اوزيري : شولې ګله ځواني مرګ شې] (۲) د دوا په موقع استعمالېږي-لکه شوله ! خدا ے د لوے که! [په دعا کښې ددې د استعمال امکان نهٔ دے معلوم]-

**شوله** :- (شو+لَ) (صف) بدقسمت-نامراد-(عموماً د ندائيه تکيه کلام د پاره استعمالېږي-لکه نامراده خواره ، خدا ے وهلي وغيره مراد ترې ښېره نهٔ وي-[دې لاندې ټپه کښې شوله : واضحه ښېره مراد ده]

شوله! د زړهٔ کرکه دې وشه
زهٔ درته ژاړم ستا خندا راپورې شينه (ټپه)

**شـوله غـم** :- (ش+و+ل+غَ+م) (ق ، اس-مـذ ، ج-ونـه) غـم او درد-درد و غـم-سخت درد او مصيبت-

**شولې** :- (شو+لَ+ې) (صف-مو) سست پست او بېکاره-ناراسته ښځه-

**شولې** :- (ش+ؤ+لې) د شوله جمع ده-د ګېډې سختې دردونه-د قولنج دردونه-نس خوږے-

**ـــــ ورپاسېدل**:-درد ور ولاړېدل-د درد پيدا کېدل-

په هر بيت ئې هسې رنګ شولې ورپاسي
لـــکـــه زېـړې پـــه ډېـــر درد سره اطفال (خوشحال)

**شولې** :- (شو+ل) (اس-جم) د شوله جمع ده-خو شوله د واحد په صورت کښې ډېر کم کوز استعمالېږي-عموماً شولې جمع په شکل کښې استعمالېږي-د وريجو (وريژو) فصل-

**ـــــ ډاډے کېدل**:-د شولو فصل په پخېدو راتلل-شولې ډاډې ، تبې ګاډې (متل)

**ـــــ سره کول**:-په شريکه شولې کول-په څهٔ کار کښې شرکت لرل-(عموماً د نفي په شکل کښې طنزاً وايهٔ شي-لکه: تاڅهٔ شولې راسره کرلې دي چې ------)-

**ـــــ کرل**:-د وريژو (وريجو) فصل کرل-

چې هېـچېرې د شـــولـــو د ســـرې بـــرکت نـــهٔ وي
شل شي ، شول شي ، شوم شي ، چې همېش شولې کوينه خوشحال)

د غوښتو په نرخ ـــــ غوښتل:-د ارزان بيعه څيز په بدل کښې ګران څيز غوښتل-د لږ خدمت يا کار زياته معاوضه غوښتل-

تـهٔ چې خپله بې عقلي ، هوښياري بولې
کاش چې بيا مې د غوښتو په نرخ شولې (رحمان بابا)

**شوم** :- (شُو+م) [ف-ص] نحوست-بدي-خرابي-

چې ګړي ګړي د ورځې شـپـو تېرېږي
په کښې راشي په چا نېکه په چا شومه (خوشحال)

**ـــــ زبون ساعت**:-بد او خراب وخت يا ګړي-

شته زما غوندې هېڅوک په هيڅ د يار کښې
پـــه څـــه شـــوم زبـــون ساعت يم زېږېدلے (حميد)

**شوم** :- (شُو+م) (ع-صف ، مذ ، مو-ه) (۱) هغه کس چې په پيسو ټکو لګولو کښې د ضرورت نه زيات بچت کوي-يا هغه چې د ضرورت په وخت ئې

هم نهٔ لګوي - کنجوس - د شوم ګټه تل سخيان خوري - (متل (۲) (ق)
سپېرهٔ - منحوس - بد - خراب - عموماً د نورو الفاظو د سابقې په طور استعمالېږي (مثالونه ئې وړاندې راځي) -

ځوک به د مرګ له شومه خلاص په ساري جهان کښې
چې سلېمان د ثقلينو سالار پاتې نهٔ شو (حافظ)

(۳) بدبخته - بدنصيبه -

چې د عرش ئې په نعلينو بدائي شوه
چې د پښو ئې خاورې نهٔ شول هغه شوم شي (خوشحال)

**ــــ بخت**: (بَ+خ+ت) (ف تر - صف ، مذ ، مو - ه) بدبخته - بد نصيبه - سپېرهٔ بخته

**ــــ پرق**: (پ+رَ+ق) (صف ، مذ ، مو ، ه) ډېر زيات شوم - ډېر زيات کنجوس - هغه کس چې پيسې ټکې لګولو کښې د حد نه زيات بچت کوي -

**ــــ توب**: (تو+ب)

**ــــ تيا**: (ت+ي) په خرڅ يا پيسو لګولو يا په بل څهٔ کار کښې بچت کول - يا لاس رانېکلې ساتل - کنجوسي - د حد نه زياته کم خرڅي -

**ــــ شغال**: (شَ+غا+ل) (اس - مذ) هغه سړے چې کنجوس هم وي او ګېدړ په شان ويرندوکے او بې همته هم - د ناخوښه سړي په حقله استعمالېږي - ډېر شوم - غېر غماز - پردے يا مخفف سړے -

**ــــ طالع**: سپېرهٔ قسمت - بدنصيبي - بدبختي -

يا زهٔ بې قدره شوم طالع کړم نهٔ پوهېږم په هېڅ
يا قدردان ددې دنيا په بازار پاتې نهٔ شو (حافظ)

**ــــ قدم**: (قَ+دَ+م) (عف تر - صف ، مذ ، مو - ه) سپېره قدم واله - سپېره -

**شوم**: (ش+م) (لاحقه) د ماضي فعلونو د واحد متکلم صېغې د جوړولو د پاره پکارولې شي - لکه: جوړ شوم روان شوم -

**شُومت**: (شُو+مَ+ت) [اس - مذ] (۱) عادت - خوش خصلت (۲) شومي - سپېرهٔ توب -

هر چې بد شومت دے خپل شومت ورلري بس دے (خوشحال)

**شومحمد خېل**: (شو+مَ+ح+مَ+د+خېل) (اس - مع) د پښتنو قبيله ده چې د برومي خېلو څانګه ده او برومي خېل ، خوائيداد خېل ، ګډي خېل ، منزي ، علي زئي محسود دي -

**شومر خېل**: (شو+مَ+ر+خېل) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د رحيم داد خېلو څانګه ده او رحيم دادخېل ، عبدالرحمان خېل ، شېرخېل ، هېبت خېل ، ناناخېل ، بيلول زئي محسود دي -

**شومړے**: (شُو+م+ړے) (اس - جم) شوملې - شړومبې - شلونبې -

**شومړے**: (شُو+م+ړے) (صف) توره تيارهٔ -

دا د غم شومړې شپه په يار رڼا شوه
که خټلے مې د زړهٔ له چاکه نمر دے (حسين)

**شومل**: (شُو+م+ل) (مص) څښکل - نوش کول -

تريخ زقوم به ئې طعام حميم شراب وي
په شوملوئې خولې ورتے سوخته کباب شي (حافظ)

**شومله**: (شو+م+لَ) (ق ، اس - مو ، ج - کې) څهٔ زوړ ځيز - ترک کړے شوے -

**ــــ کول**: غورځول - ترک کول -

**ــــ کېدل**: ترک کېدل - غورځولے کېدل - پرېښودے کېدل -

**شوملې**: (شُو+م+لَے) [اف - مذ] څښکلے - نوش کړے -

**شوملې**: (شُو+م+لې) (اس - جم) شلومبې - شړومبې - د ماستو اوبهٔ چې کوچ ترې وُويستے شي - تروې -

**ــــ شاربل**: داسې کار کول چې فائده ئې هېڅ نهٔ وي - بې فائدې محنت کول - عبث کار کول -

ما خپل کام بيا نهٔ موند شوملې شاربم مسکه نهٔ وي
څه کرم نور وګړي که روزي دې کامراني شوه (حافظ)

**د کلي ــــ غوښتل**: ډېر زيات غريب او خوار "بودل" -

مور ئې د کلي شوملې غواړي
لور ئې په پاؤ کوچو سر نهٔ غوړوينه (ټپه)

**شومه**: (شُو+مَ) (اس - مو ، ج - مې) (۱) د مېوهٔ وغېره نه ايستلې شوې اوبهٔ - عرق - (۲) د څهٔ ځيز قوت او جوهر -

**شومه**: (شُو+مَ) (اس - مو ، ج - مې) د مړي نه پس د اولې شپې خېرات -

**ــــ کول**: په مړي پسې په اوله شپه خېرات کول -

**ــــ مړه**: (م+ړ) (پ تر - اس مو) سړي پسې (د هغهٔ د مرګ په شپه يا عموماً د جمعې د شپې خېرات -

**شومه**: (شُو+مَ) (اس - مؤ ، ج - يې) د ماسختن نه پس تر نيمې شپې پورې وخت -

**ــــ دم**: (دَ+م) د شپې هغه وخت چې خلق اودهٔ شي اوچته چوپيا شي - نيمې شپې ته نژدې وخت -

**ــــ قلاره**: (قَ+لا+رَ) (و ــــ شومه دم)

**شومه**: (شُو+مَ) (ق ، اس - مو ، ج - مې) (۱) د يو وخت د خوراک مقدار - رزق - روزي لکه: "سړے بايد چې د سهار او ماښام شومه ولري او بس" - (۲) نفقه - هغه خوراک چې بال بچ له ورکولې شي - اوزيري : په مړي پسې چې کوم خېرات ، شومه يا ډوډۍ کوله شي]

**ــــ کول**: خوراک کول - نذر کول - لکه: "راتلو سره دې زما لونګۍ د اور شومه کړه" -

**ــــ کېدل**: خوراک کېدل - نمړي کېدل - لکه: "دا مخ دې د خاور شومه شه" -

**شومه**: (شُو+مَ) (ق - اس مو - ج - ے) د کنستلې شوي قبر اولنۍ برخه -

**شومۍ**: (شو+مَ+ی) (اس مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم چې د ګړي خېلو څانګه ده او ګړي خېل ، باران خېل ، چهار خېل ، شمن خېل محسود دي - (په بله شجره کښې د باران خېلو په ځاے براند خېل نوم ليکلے دے او د ګړي خېلو په ځاے ګرائي خېل) -

**شومي خېل**: (شو+مي+خېل) (اس مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د شوکۍ خېلو څانګه ده او شوکۍ خېل ، توري خېل ، ابراهيم خېل ، اتمان خېل ، درويش خېل وزير دي -

**شُومې**: (شُو+مې) [اس - مذ] شومه ۲ - د ماسخوتن نه پس تر نيمې شپې پورې وخت

تر اول حسن اخر عالي دماغ وي
شي له شومي په سړي د سحر خوب سخت (حميد)

**شومے**: (شُو+مَے) [اس - مذ] (۱) شومتيا - کنجوسي (۲) لوږه - کمزوري (۳) (ف) بدبختي - سپېرهٔ توب - نحوست -

**ــــ بخت**: (بَ+خ+) د بخت سپېره والے - بد بختے - بد قسمتے -

**ــــ تقدير**: (تَ+ق+دي+ر) (و ــــ شومي بخت)

**ــــ طالع**: (طا+ل+ع) (و ــــ شومۍ بخت)

**ــــ قسمت**: (ق+س+مَ+ت) (و ــــ شومۍ بخت)

**شوميت**: (شُو+مي+يَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) بد بختي - سپېرهٔ والے -

قارون قصر ته له ګنجه سره پرېوت
په شريعت د کيني بغض خوا مُهمان دے (حافظ)

**شؤن**: (شُ+اُو+ن) (ع - ج) د شان جمع ده - درجې - مرتبې - عزت -

**شونټې**: (شو+ن+ټ+ي) [اس - مؤ] د ډېوې لړګے - ډيوټ -

**شونډ**: (شُو+ن+ډ) (اس جم) سُونډ - سُنډ - زنجبيل - ادرک -

**شونډ** :- (شُو+ن+ډ) (اس-مذ ، ج-ونه)(۱) لويه پوزه -(۲) خرتم -(۳) د شونډه مخفف -د سابقې په طور نورو الفاظو سره راځي -

**شونډا** :- (شُو+ن+ډا) (اس-مذ ، ج-ګان) (۱) هغه چې شونډه ئې پرېکړے شوې وي -کنډے (۲) غټو غټو شونډو واله -شونډټ -شونډور -

**شونډان** :- (شُو+ن+ډا+ن) (اس-مذ) د شونډ (مذکر) جمع ده -شونډې -

**ــــ ځړول**:- شونډې زوړوندول -مجازاً ناخوښي ښکاره کول -

**ــــ ځړېدل**:- خفه کېدل -(ق) کېدل -تنګېدل -بدنيتي کول -

**ــــ وچتېدل**:- وار خطا کېدل -جواب ترې نه جوړېدل -د څۀ خبرې نه ډېر متاثره کېدل -

**شونډټ** :- (شُو+ن+ډ+ټ) (و---- شونډا ۲ )

**شونډک** :- (شو+ن+ډ+ک) (اس-مذ ، ج-ونه)(۱) خرتم -شونډټ -

**شونډکے** :- (شو+ن+ډ+کے) (ق ، اس-مذ ، ج-کي) بد شکله سړے -

**شونډکيز** :- (شُو+ن+ډ+کي+ز) (صف ، مذ ، مو -ه) شونډو يا شونډې واله -لوے شونډو واله -

**ــــ چرګ**:- (چ+ر+ګ) خرتمې -يو قسمه غټ چرګ چې د خرتم په شان شونډه لري -فيل مرغ -

**شونډو** :- (شُو+ن+ډو) (اس-مذ) شونډه -شونډياره -

**شونډه** :- (شُو+ن+ډَ) (اس-مو ، ج-ډې) (۱) لب -(اردو هونټ) -(۲) غاړه -مورګه

**ــــ بوخه ول**:- د نفرت اظهار کول -کرکه ښکاره کول -

شونډه بوخه نځوال کا

چې مې وُويني او ضاع (خوشحال)

**ــــ پرېکړے**:- هغه سړے چې شونډه (يا شونډې) ئې پرېکړے شوې وي -کنډے -

**ــــ په شونډو ړدل**:-

ړدمه په هسې شونډو شونډه زۀ نن سعادت

چې مې نـــۀ دي بوچ پکار مصري نبات (حميد)

**ــــ شنه کېدل**:- په برنۍ شونډه نوي نوي بريت راتوکېدل -کنايتـهً ځوانېدل -ځوانۍ ته رسېدل -بالغ کېدل -

**ــــ لکه ول**:- په شونډو چاته اشارت کول -د نا خوښۍ -کرکه يا حقارت ښکاره کول -لکه: شونډه ئې ورپسې لکه کړه -

**ــــ ور**:- (و+ر) (صف -مذ ، مو -ه) غټو شونډو والا -شونډا -

**له ــــ پۍ څڅېدل**:- د ماشوم بودل -د پيو ماشوم بودل مجازاً کم عقل -ناپوهه بودل

لا د پۍ له دواړو شـــونډو نه څڅېږي

په ځواب دې ژبې بند کړې د هوښيارو (خوشحال)

**شونډے** :- (شُو+ن+ډ) (اس-ج) (۱) د "شونډ" جمع ده -(۲) د "شونډه" اضافي شکل دے -

**ــــ اوچېدل/وچېدل**:- ويرې اخستل -وارخطا کېدل -

**ــــ په شونډو کښېښودل** :- بوسه اخستل -خوله اخستل -

چا چې په شونډو د ساقي د ميو جام اينبے دے

شناخت د اشنائي په خاطردائم صدام اينبے دے (حافظ)

**ــــ ځړول**:- بدنيتي کول -نيت بدول -خپه کېدل -تنګېدل -لکه فلاني کړه ورغلو شونډان ئې وځړول -

**ــــ چيچل**:- (۱) شونډې د غاښونو لاندې کول -مجازاً د غصې اظهار کول -ناخوښي ښکاره کول -(۲) (مجاز) د شونډو غاښونو لاندې کولو په ذريعه چاته اشارت کول -(عموماً د منع اشاره کول) -

**ــــ خوړل**:- شونډې ځېښل

زۀ ئې تل خورم خوږې شونډې (خوشحال)

**ــــ سپړل**:- شونډې پرانستل -د شونډو يعنې د خولې نه څۀ خبره ايستل -څۀ وئيل

چې په ذم د پاک سر شتو شونډې سپړي

پـه سکروټو د دوزخ دواړه شفقت ړدي (حافظ)

**ــــ مرۍ لړې کېدل**:- (و---- شونډې ورانې ورانې تلل)

**ــــ ملوکے**:- نازکې او ښکلې شونډې -

يا بــه سر د خپل ورمېږ پــه وينو سور کړم

يا به ښکل کړم دغه ستا شونډې ملوکې (خوشحال)

**ــــ نۀ خوځول**:- شونډو له حرکت نۀ ورکول -مجازاً چپ پاتې کېدل غږنه کول -

**ــــ ورانول**:- (۱) ناخوښي ، کرکه ، حقارت ښکاره کول -(۲) ژړغونے کېدل -ژړاته نژدې کېدل -په دې خبره ئې شونډې ورانې کړې -

**ــــ ورانې ورانې تلل**:- ژړغونے کېدل -خولۀ ژړاته جوړېدل -خولۀ ورانه ورانه تلل -

**شونډياره** :- (شُو+ن+ډ+يا+رَ) (اس-مو ، ح-رې) شونډه -لب -

**شُونګوره** :- (شُو+ن+ګُو+رَ) (اس-مو ، ج-رې) هغه سپښته چې يو اړخ ئې نۀ وي يا مات شوے وي -

**شونګه** :- (شُو+ن+ګَ) [اس-مؤ] (و---- شونګوره)

**شــونے** :- (شُـو+نے) (اس-مف-ج-شـوني) (۱) کېدونکے -(راپېښېدونکے -د مقدر ليک کوم چې ضرور واقع کېدونکے دے) -(۲) ممکن -ممکن العمل -لکه دا کار شونے نۀ دے -

**شوو** :- (ش+وو) (اس مو) پناه -

**ــــ ورکول**:- پناه ورکول -

**شوور** :- (شو+و+ر) (انګ-صف) يقيني -باوري -بې شکه -ضرور اورومرو -

**شووربي** :- (شو+و+ر+بي) (انګ -اس -مو) ضمانت -ډاډتوب -ضامن-

**شوه/ښن** :- (ش+وَ) (صف-مو ، ج-شوے ، ښوے ) سر په ښکته -ځوړ -

**ــــ کول**:- سر په ښکته کول -په ځوړ کول -

**ــــ کېدل**:- سر په ښکته کېدل -په ځوړ کېدل -

**شوه** :- (ش+وَ) (د شول مصدر نه د ماضي مطلق فعل) يو کلمه ده چې د څۀ وعدې اقرار د پخولو په وخت وئيلے شي چې دا خبره پخه شوه نو بل هم ورته همدغه شان څۀ کلمه اووائي چې او پخه شوه -

**شوه** :- (ش+وَ) (اس مو ، ج-شوې) د ونو يو مشهور قسم (شيشم) (پنجابي ټالي)

**شوه** :- (ش+وَ) (اس مع) د مردان په ضلع کښې يو لوے کلے پخوا به په دې کلي کښې نسوار ډېر اعلى جوړېدل -ځکه د "شوې نسوار" د ښۀ نسوارو په حقله محاوره شوه -[شمالي وزيرستان يو تحصيل شوه ]

**شوهر** :- (شَو+هَ+ر) (ف-اس-مذ ، ج-ان) خاوند -څښتن -مېړۀ -

غلولي وے بــوډۍ ډېـــر شـوهران دي

تۀ پرې خوښ لکه په ښه ناوې شا به ئې (حافظ)

**شــوے**:- (ش+و+ې) (لاحقه) د ماضـي د متلونـو د حجـه حاضـر (مخاطب) د صيغې د جوړولو دپاره پکارولے شي -لکه خفه شوے وران شوے -

**شوي** :- (شو+ئ) سپين سينه کېره -لکه هندو په ښټ کښې شوي ځير وه -

**شوئ** :- (شُو+ئ) شوئے (شو+ئـے) (اس) هغه خامتا (يا مالکين) چې په يو خاص طريقه وينځلو نه پس سپينه راوتې وي -(شوئ د فارسۍ شتن نه راوتے دے چې معنې ئې وينځل ده) -

خو لږ ساعت ئې هوا هوسي دے

ورتــه تيـار دے کفن د شــوئے (سعيد)

**ــــ کول**:- د خامتا (يا د مالکين) په خاص چل وينځل چې خړوالے ئې لاړ شي او تکه سپينه راووځي -وينځل -

ـــــ **کېدل**:- د خامتا (یا د مالکین) په خاص طریقه وینځلې کېدل چې خړوالے ئې لاړ شي او سپینه راووځي - وینځلے کېدل -

**شوے** :- (ش+وَے) [اصف]

**په ـــــ ډګار پاتې کېدل**:- په ډاګ مېدان پاتې کېدل - په اوار ډګر پاتې کېدل۔

**شوئې** :- (شو+ے) (ف - اس - مذ) (وـــــ شو)

**شوے** :- (ش+وے) (لاحقه) د ماضي فعلونو د واحد حاضر (مخاطب) د صیغې د جوړولو دپاره پکارېږي - لکه خفه شوے روان شوے -

**شوے** :- (شَ+وے) (ق - اس - مذ ، ج شوي) د یوې مشهورې ونې نوم چې په اردو کښې ورته "نسیم" وائي چې ډېره ګوره وي او پوست او پاڼې ئې په دارو ګانو کښې استعمالېږي -

**شوے** :- (ش+وَے) (اس - مذ ، ج - شوي) د شول مصدر نه د ماضي فعل خو د اسم په معنٰی کښې راځي - یعني هغه کار کوم چې واقع شوے وي - لکه دا یو شوے کار دے یعني دا کار اوس عمارا واقع شوے دے یا چې اوس چې څۀ شوي دي هغه شوي دي - یعني کوم کار چې اوس واقع شوے دے هغه خو خپل عمل کښې راغے - اوس د هغې په حقله څۀ نۀ شي کېدے -

**شوے** :- (شَو+ئے) [ف - اس - مذ] شوهر - خاوند - څښتن -

توفیق لـه خدایـه د عبادت غواړه
خدمت د شوئے کړه د ځان صحت غواړه (خوشحال)

**شوي** :- (ش+وي) (فع) د کېدل - مصدر نه د ماضي صیغه ده - مراد ترې لیکلي شوي یا مقدر شوي وي -

هر چې شوي نۀ بدلېږي دا په څۀ کړې
هومره ډېرې اندېښنې هومره وسواس (خوشحال)

**شوئې بئ** :- (شو+ئے+بَ+ئ) (اس مع) د پښتنو دیوې قبیلې نوم چې د بابا خېلو یوه څانګه ده او بابا خېل ، ګلیشا ، بدني شمن خېل ، شمن خېل ، محسود دي -

**شوئ خېل** :- (شو+ئ+خېل) (اس مع) د پښتنو قبیله چې د بوجباخېلو څانګه ده او بوجباخېلو ، شنګي خېل ، بهلول زئي محسود ي -

**شوئي خېل** :- (اس مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې د نري خېلو څانګه ده او نري خېل ، بقاخېل ،ولي خېل اتمان زئي ، درویش خېل وزیر دي -

**شویول** :- (شو+يَ+و+ل) (مص) د څۀ څیز یا کار نه غافله کول - بوس لاندې کول

**شۀ** :- (ش) (پ - فعل) (۱) د کېدل مصدر نه د ماضي صیغه ده - وُشه - اوشه - (فارسي:شد) (۲) لاحقه ده چې د ماضي فعلونو د واحد غائب د صیغې د جوړولو د پاره پکارېږي - لکه خفه شه ، جوړ شه وغېره - ځینې وخت په مجهوله واو هم بدله کړے شي - یعني شو جوړ شو ، خفه شو - ځینې وخت "او" هم ورسره ورزیات کړے شي - او "شولو" ترې جوړ کړے شي -

**شه** :- (شَ) (فعل) د کېدل مصدر نه د امر صیغه ده - وشه ،اوشه ، (اردو: هوجا)

**شه** :- (شَ) (وـــــ ښه) جن لاشه ده خوله به درکي په باري -

**شه** :- (شَ+ه) (ف - اس - ج - مذ - ان)(۱) د شاه مخفف دے - بادشاهي - باچا (۲) د شاه مخفف دے خو د سابقې په طور نورو الفاظو سره راځي او د لوے معنٰی ورکوي - (مثالونه ئې ورانديې راځي)۔

ـــــ **باز**:- (با+ز) (ف تر - اس - مذ - ج - ان) لوے باز - شهباز - د بازونو یو قسم چې غټ او زورور وي -

ـــــ **بال**:- (با+ل) (وـــــ شه پر)

ـــــ **بالا**:- (با+لا) (ف - اس - مذ) د واده زلمے - د واده هلک - د واده ځنکے - د واده ژنکے -

**شه ـــــ پر** - لوئې وزر - د مارغانو لوئې وزر -

هسې باز در څخه ، تائې وتړل شهپر (خوشحال)

ـــــ **توت**:- (تو+ت) (ف تر - اس ، مذ ، ج - آن) د توتانو یو قسم چې د عامو توتانو نه ډېر اوږد او خوږوي شاتوت -

ـــــ **تیر**:- (تي+رے) (ف - تر - اس - مذ ، ج - ونه) د کوتې لوے تیر - شاتیر - بېنش - بش

ـــــ **چنګ**:- (چَ+ن+ګ) (اس - مذ ، ج - ونه) لوے چنګ یا پنجه -

ستـرګـو ستا مې په مژګانو جګر کښېښ
که شهباز په شمچنګ زړۀ د کوترو کښېښ (میا نعیم)

ـــــ **خوبال**:- (ه+خو+با+ل) (ف تر - اس - مذ) د خوبانو بادشاه - د خوبانو سردار - د ښکلو سردار - معشوقې ته وئیلے شي -

ـــــ **رګ**:- (رَ+ګ) (ف تر - اس - مذ ، ج ونه) لوے رګ - مرۍ کښې هغې لوے رګ ته وائي چې که دغه رګ پرېکړے شي نو بیا بني ادم (یا بل جاندار) ژوندے نۀ شي پاتې کېدے - د ځان رګ -

ـــــ **رګ تېنګول (د چا)** :- (۱) کنایه - څوک پوره طور سره په قابو کښې راوستل - (۲) د چا نه څۀ داسې څیز په قبضه کښې کول چې هغه په شکست منلو مجبوره شي او مقابلې جوګه پاتې نۀ شي -

ـــــ **رګ پرېکول (د چا)** :- (۱) بیخ ختمول - مړ کول - وژل - (۲) د چا نه څۀ داسې څیز قبضه کول چې ددغې نه پس په هغه کښې د مقابلې زور قوت پاتې نۀ شي

ـــــ **رګ راګېرول (د چا)** :- (وـــــ شه رګ تېنګول) -

ـــــ **زاده**:- (زا+دَ) (ف تر - اس - مذ ، ج - ګان) (۱) شاه زاده - د شاه زېږولے - د باچا زوے - (۲) پاک او بې ګناه - نېک -

ـــــ **زادګي**:- (زا+د+ګ+ي) (فپ تر - اس - مو) (۱) د شهزاده تانیث دے - د شه لور ، د شاه لور - د باچا لور - (۲) په ناز نعمت کښې لویه شوي جینۍ۔

ـــــ **زور**:- (زو+ر) (ف تر - صف - مذ ، مو - ه) لوے زوروالـه - ډېر قـوت والـه - مضبوط تکړه - پهلوان۔

ـــــ **زوري**:- (زو+ري) (ف تر - اس - مو) (۱) ډېر زور لرنـه - ډېر طاقت لرنـه - مضبوطي - تکړه والے - پهلواني - (۲) زورور تیا - زبردستي - زور ښودنه -

ـــــ **سوار**:- (سَ+وا+ر) (ف تر - صف ، مو ، مو - ه) (۱) لوے سور - تکړه سور - د سورلۍ د کار مړنے - مړنے - (۲) د ځینو نارینهؤ په نوم کښې هم استعمالېږي -

هـر چې شهسواران دي وارو تېزلے وړاندې
زړۀ د دوي په منډه دا یم ځم وریسې دروم (خوشحال)

ـــــ **سواري**:- (س+وا+ري) (ف - تر - اس - مو) مهارت سره (درس وغېره) سورلي

ـــــ **کار**:- (کا+ر) (ف تر - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) په کارونو کښې لوے کار مجازاً د چا ډېر لویه کارنامه - عام طور سره د ارټ - مصورۍ ادب شاعرۍ - مجسمه سازي وغېره په حقله وئیلے شي (۲) (طنزاً) د شرارت او د وراني یا د دروغو څۀ لویه کارنامه -

ـــــ **ناز**:- (نا+ز) (ف تر - صف) (۱) هغه څیز (مرغلره وغېره) چې بادشاه پرې هم نازکوي - عموماً د زنانو ؤ په نومونو کښې استعمالېږي (۲) د موسیقۍ د یو سُر یا د یو راګ نوم -

ـــــ **نشین**:- (نَ+شي+ن) (ف تر - اس - مذ ، ج - ونه) د بادشاه د کښېناستو ځاے - لوړ او د عزت ځاے -

ـــــ **نائي**:- (نا+ئي) (ف تر - اس - مو) لویه "نائے" لویه شپېلۍ - د سُرنا یو قسم - چې عموماً (د هندي خلقو) په وُدونو کښې غږوله شي۔

ـــــ **نائي غږېدل**:- د شنهنائي ساز غږېدل - کنایتهً د وادۀ خوشحالي کېدل - (خصوصاً د هندي خلقو په حقله وایه شي)۔

ـــــ **وار**:- (وا+ر) (ف تر - صف) (۱) هغه څیز (مرغلره وغېره) چې د بادشاه لائقه

وي (۲) د مسلمانانو د زنانوؤ د نوم په طور استعمالېږي -

**ـــــ رګ نه نيول**:- (و----- شهرګ ټينګول)

**شه** :- (شَ+ه) (ف - اس - مذ) د شطرنج په لوبه کښې چې د مخالف باچا د مهرې په زد کښې راشي نو دغې مخالف ته د خبر داري د پاره د "شه" لفظ وئيلے شي - يعني باچا د بچ کړه (ځکه چې د باچا وژلے کېدل ماتې خوړل وي) - د "شه" په ځاے د "کشت" لفظ هم وائي -

**ـــــ بچ کول**:- چې د مخالف مهره بادشاه د وهلو (يا د وژلو) د پاره مخامخ شي نو د هغهٔ د پاره د هر څهٔ نه اول د خپل باچا بچ کول ضروري وي - د وهونکي مهرې د زد نه خپل باچا په بل کور کي کښې په ډډه کول -

**ـــــ پيل**:- (پي+ل) (ف تر ، اس - مذ) د شطرنج په لوبه کښې د پيل (فيل) بادشاه ته مخامخ راتلنه - بادشاه ته د پيل شه يا کشت -

**ـــــ چال**:- (چا+ل) (ف تر ، اس - مذ) د شطرنج په لوبه کښې باچا د خپلې خانې نه (کورکي) نهٔ صرف يو قدم اخستے شي - يعني د خپلې خانې سره جخته خانې نه اوړېدے شي خو په ټوله لوبه کښې هغه د اس په شان دوه نيم کوره ټوپ هم وهلے شي - دا ټوپ صرف يو ځل وهلے شي هغه هم وخت په چې لاګشت ورله نهٔ وي ورکړے شوے دې ته "شپ چال" وائي -

**ـــــ رخ**:- (رُ+خ) (ف تر - اس مذ) د شطرنج په لوبه کښې د رُخ (يوه مهره) په ذريعه "شه" يا کشت ورکول -

**ـــــ رخي**:-(رُ+خي) (ف تر - اس مو) د شطرنج په لوبه کښې بادشاه داسې خانه کښې کښېښودل چې د مخالف کومه مهره ئې وهلے (وژلے) شي - بادشاه په داسې خانه کښې نهٔ شي کښېښودلے کېدے -

**ـــــ مات**:-(ما+ت) (ف تر - اس - مذ) د شطرنج په لوبه کښې د مخالف بادشاه له داسې "شه" ورکړے شي چې بادشاه تري بلې هيڅ يوې خانې ته نهٔ شي اوړېدے يا چې کومې خانې ته اوړي وهلے (وژلے) کېږي نو دا د لوبې بېلات يا ماتې وي -

**ـــــ ورکول**:- خپله وهونکے مهره د مخالف لوبغاړي باچا ته مخامخ راوستل چې د هغه د پاره خپل باچا بچ کول ضروري شي - (د دغې مهرې په کښېښودو سره د "شو" اواز هم ورکولے شي -

**شها** :- (شَ+هَا) (حرف ندا) د شه يا شاه د پاره د ندا کلمه ده يعني اے شه! يا اے شاه ! اے باچا -

**شـها** :- (شَ+هـا) (اس مـع - مـو) (۱) شـهي - د پښـتو مشـهور رومـاني قيصـې هېروئينـه چـې د تـوردلي معشـوقه وه - (و--- شـهي) -(۲) هـرې ښـکلې ښځې او معشوقې ته شهاؤ شهي او شهو وئيلے شي-

د شها د زلفو بوي ورسره بس دے

نور به څهٔ کا په بل بوي باندې غرض (خواجه محمد)

**شهاب** :- (شَ+هَا+ب) (ف - اس) شوخ سورنګ -

**شهاب** :- (شِ+ها+ب) (ع - اس - مذ ، ج ـونه) (۱) لنبه - شعله - شغله -

(۲) ماتېدونکے ستورے هغه ستورے چې د شپې د خپل ځاے په بل ځاے ته په تېزئ سره غشے شي او يوه شوخه لنبه وکړي - دې ته شهاب ثاقب وائي - (و----- شهاب ثاقب)

که ناسازې د سپهي و د شهاب کښنم (خوشحال)

(۳) ستورے - کوکب -

**ـــــ ثاقب**:-(ثا+قِ+ب) (ع - اس - مذ) ماتېدونکے شعلے - ماتېدونکے ستورے - هغه ستوري شان چې د شپې په اسمان کښې د اور د شغلې په شان لمبه شي - غشے شي او بيا مړشي - دا په اصل کښې ستوري نهٔ وي - بلکې د ستورو ټکړې دي چې د کروړو په شمېر کښې د کروړونو راسې په خلا کښې متحرک دي هر کله چې په دې کښې ځينې ټکړه د زمکې نه

چاپېره د هوا کُرې ته راشي نو د هوا سره د مښل کېدو (رګړ) په وجه د سره ګرم شي چې لنبه شي - يو ساعت وبريښي او بيا پخپله سوے سکارخ شي او غيب شي -

**ـــــ شهاب خېل**:- (شِ/شَ+ها+ب+خېل) (اس - مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے چې د منظر خېلو يوه څانګه ده او منظر خېل ، تور خېل ، عمر زئي ، شين خېل ، احمد زئي ، درويش خېل وزير دي-

**شهاب الدين ۱** :- (شِ+ها+بُ+د+دي+ن) (اس مع) پښتون باچا - شهاب الدين غوري - په هند باندې ئې نهه حملې کړې دي - يو کال ئې د پرتهوي راجه نه ماتې خوړلې وه نو د فوځ افسرانو ته ئې د اسونو تو برے وخېژولے بل کال بيا راغې او د پرتهوي راجه نه ئې بدل واخيست او په هند کښې ئې د مسلمانانو د سلطنت بنياد کښېښود- ۱۲۱۰ ء کښې وفات شو -

**شهاب الدين ۲** :- (اس مع) د بغداد د شېخانو شېخ وۀ او ډېر لوے عالم وۀ - په سهرورد کښې پيدا شوے وۀ ځکه د سهروردي په نوم مشهور دے - د دهٔ د تصوف طريقه هم سهرورديه بللے شي - په ۵۳۷ هجري کښې پيدا شوے وۀ په ۲۳۰ ء کښې وفات شوے دے -

**شـهاب الـدين خېـل** :- (شِ/شَ+ها+بُ+د+دي+ن+خېل) (اس مـع) د پښـتنو يـوه قبيله چې ګريريو څانګه ده او ګريري ، شمي خېل ، پلي خېل ، منزئي ، علي زئي ، محسود دي -

**شـهاب ديـن خېـل** :- (شِ/شَ+ها+ب+دي+ن+خېل) (اس مـع) د پښـتنو قبيلـه ده چې د مسکو څانګه ده او مسکي ، ملي زاد داوړ دي-

**شهاب الدين زئي** :- (شِ/شَ+ها+بُ+دي+ن+زَ+ئ) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د حمزه زئيو څانګه ده -حمزه زئي ، بېل خېل موسیٰ زئي دي -

**شهاب زئي** :- (شَ/شِ+ها+ب+زَ+ئ) (اس مع) د پښتنو يو قبيله ده چې د ملي زيو څانګه ده او ملي زئي ، عبدالله زئي ، سنځر خېل کاکړ دي

**شـهادت** :- (شَ+هـا+دَ+ت) (ع - اس - مـذ ، ج - ونـه) (۱) ګـواهي - شـاهدي (۲) د خداے په لاره کښې وژل کېدنه -

**ـــــ تحريري**:- (تَ+ح+ري+ري) (عف تر - اس مذ) ليکلـي شـوي ګـواهي - ليکلې ګواهي - هغه ګواهي چې د کاغذاتو او دستاويزونو په ذريعه ومنلے شي يا پېش کړے شي-

**ـــــ نامه**:-(نا+مَ) (عف تر - اس - مو ، ج - م) (۱) په مقدمه کښې هغه ګواهي چې عدالت ته ليکلې شوې وړاندې کړے شي -(۲) هغه کتاب چې په کښې د حضرت امام حسين عليه السلام د شهادت ټول حال ليکلے شوے وي - دا عموماً په نظم کښې وي - پښتو کښې ورته جنګنامه امام حسين هم وائي - (۳) هغه کپړه چې کلمه طيبه پرې ليکلې شوې وي ،او مړي سره د هغهٔ په کفن کښې شاملوولې شي - (د شيعه ګانو د ستور دے) -

**په ـــــ رسېدل**:- شهيد کېدل - د خداے په لاره کښې وژل کېدنه -

**چشم ديد ـــــ**:- (چَ+ش+م+دي+د) (ف تر - صف) هغه ګواهي چې ګواه په خپلو سترګو ليدلے وي - د سترګو ليدلې واقع شهادت -

**د ـــــ شپه**:- (ش+پَ) د عاشورې شپه - هغه شپه د کومې نه په وړانديني وړځ چې حضرت امام حسين عليه السلام شهيد کړے شوے وۀ -

**د ـــــ کلمه**:- (کَ+ل+لي+مَ) (عپ تر - اس - مو ، ج - ے) د مسـلمانانو د ديـن بنيادي کلمه يعني لااله الاالله محمد الرسول الله ځينې وخت دې سره د شهادت الفاظ هم ورزياتولے شي - يعني: اشهد ان لااله الاالله و اشهد ان محمداً عبده ورسوله - يعني زه ګواهي ورکوم چې د الله پاک نه بغېر بل معبود نهٔ شته او زهٔ ګواهي ورکوم چې محمد صلعم د هغهٔ بنده او د هغهٔ رسول دے

**شـهامت** :- (شَ+هـا+مَ+ت) (ع - اس - مـذ ، ج - ونـه) بهـادري - شـجاعت - تـوره

مېرانه - زړه ورتوب - لويي - بزرګي - داسې لوړو کارونو ته هڅه چې وروستو ئې پرې ښهٔ نوم يادېږي -

**شهانه** :- (شَ+ها+نَ) (ف - صف) (۱) د بادشاه سره جوړېدونکے - شاهانه باچاهي -(۲) د ډولکي يا د طبلې يو ګټ دے -

**شهباز** :- (شَ+ه+با+ز) (ف تر - اس - مذ ، ج - ان) لوے باز - مشهور ښکاري مارغهٔ -

**شهباز خان** :- (خا+ن) [اس مع - مذ] د خوشحال خان پلار چې شاه جهان بادشاه د طرفه د ختکو سردار وهٔ - د يوسفزو سره په جنګ کښې ۱۰۵۰ هجري کښې ووژلے شو -

**شهباز کور** :- (شَ+ه+با+ز+کور) (اس مع) دا د رجائي خيلو ځانګه ده چې رجائي خېل ، يوسف خېل ، عيسیٰ خېل مهمند دي -

**شهباز ګړه** :- (ګَ+ړَ+ه) (اس - مذ) د مردان په ضلع کښې يو ډېر زوړ کلے دے - دا شوک د زمانې اثار لري - په پښتنو کښې د يو متل په وجه مشهور دے - چې شهباز ګړه د سترو ځاے دے يا د سترو ځاے شهباز ګړه ده -

**شهبازي** :- (شَ+ه+با+زِي) [اس - مؤ] د شهباز مارغهٔ په شان کار - مجازاً توره ، مېرانه -

**ـــ کول**:- د شهباز مارغهٔ په شان کار کول - مجازاً توره مېرانه کول - په دښمن يا د شمنانو د باز په شان غوټې وهل يا حملې کول -

**شهد** :- (شَ+ه+د) (ف - اس جم) (۱) ګبين - شات - مشهوره ټينګه خوږه ماده چې د شهدو مچۍ ئې جوړوي -(۲) خوږ -

**ـــ امېز**:- (ا+مي+ز) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) (۱) شهدو سره ګډ - په شهدو خوږ کړے -(۲) خوږ -(۳) خوږے خبرې -

**شهداد خېل** :- (شَ+ه+دا+د+خېل) (اس مع) د پښتنو قبيله ده چې د قمبر خېلو يوه ځانګه ده او قمبر خېل ، بزوتي ، دولت زئي ، اورک زي دي -

**شهداد خېل** :- (ددغه) (اس مع) دا د متکۍ يو ښاخ دے چې اتمان خېل دي -

**شهداء** :- (شُ+ه+دا) (ع - ج) د شهيد جمع دے - شهيدان - د خداے په لاره وژلي شوي خلق -

**شهده**:- (شُ+ه+دَ) (ه - صف) شوده - کم عقل - ساده سړے -

**شهر** :- (شَ+ه+ر) (ف - مذ ، ج - ونه) (۱) ښهر - ښار -(۲) (ع) مياشت - ماه -

**ـــ اشوب**:- (ا+شو+ب) (ف تر - اس - مذ ، ج ونه) (۱) هغه نظم ته وائي چې د يو ښار د خلقو په کښې ستاينه شوې وي -(۲) هغه نظم چې پکښې د يو ښار د تباهي او بربادۍ حال بيان شوے وي -

**ـــ بانو**:- (با+نو) (ف تر - اس - مو) (۱) د ډېرو مشهور ښځو نوم لکه د رستم د ښځې نوم (۲) د امام حسين عليه السلام د بي بي نوم چې د ايران د کسریٰ يزدجرد لور وه (۳) د پښتنې روماني قصې لکه يوسف خان شېربانو -

**ـــ پناه**:- (پ+نا+ه) (ف تر - اس - مذ) د ښار نه چار چاپېره لوے او لوړ دېوال -

**ـــ خموشان**:- (خَ+مو+شا+ن) (ف تر - اس - مذ) د خاموشو خلقو ښهر - مجازاً قبرستان - اديره -

**ـــ سازي**:- (سا+زي) د ښار تعمير کوُنه - د ښارنو جوړوونه -

**ـــ العسل**:- (رُ+ل) عَ+سَ+ل) (ع تر - اس) د شهد مياشت - د وادهٔ زلمے او ناوې د وادهٔ نه پس مياشت يا څهٔ ورځې يو ځاے په سياحت وغېره کښې تېروي - اصلاً دا د انګريزي هاني مُون پښتو ترجمه ده - په پښتو کښې ئې لاتر اوسه رواج نهٔ دے شورو شوے -

**ـــ ناپرسان**:- (نا+پُ+ر+سا+ن) (ف تر - اس - مذ) هغه ښار چېرته چې د چا د تپوس کولو څوک نهٔ وي يا دا چې هلته څوک د چا په فرياد هغه سره انصاف د پاره نهٔ ور رسي - داسې ښار چې څهٔ قانون انصاف په کښې نه وي - چاچې څهٔ کړي وي هغه ئې کړي وي -

**ـــ ناز**:- (نا+ز) (ف تر - اس) (۱) هغه کس يا څيز چې ټول ښار پرې فخر او ناز کوي - خصوصاً بې کچه ډېره ښکلې ښځه (۲) د زنانهٔ نوم -(۳) د موسيقۍ يوه نعره -

**ـــ نبي**:- (نَ+بي) (ف تر - اس مع) د نبي صلعم ښار - مدينه منوره - مدينه النبي (د نبي ښار) -

**ـــ يار**:- (يا+ر) (ف تر - اس ، مذ - ان) د ښار دوست - مجازاً بادشاه - باچا -

که په ګنج د شاهۍ فخر شهر يار کا
عـاشقان ئې د دلبرو پـه رخسار کا (رحمان بابا)

**ـــ ياري**:- (يا+ري) (ف تر - اس مو) د ښار دوستي - مجازاً بادشاهي - باچاهي

**شهرت** :- (شُ+ه+ر+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) مشهوري - مشهورتيا - نوم يا حلال وغېره خورېدنه او تر لرې لرې رسېدنه - (عموماً د ښهٔ نوم وغېره د پاره استعمالېږي خو ځينې وخت د بدنامۍ او د خرابې خبرې د خورېدو په حقله راځي) -

**ـــ پيدا کول**:- شهرت موندل - په څهٔ کار يا فن وغېره کښې مشهورېدل -

**ـــ حاصلول**:- (و---- شهرت پيدا کول)

**ـــ ګټل**:- (و------- شرت پيدا کول)

**ـــ يافته**:- (يا+ف+تَ) (ف - تر - صف) هغه کس يا څيز چې شهرت ئې موندلے وي - مشهور شوے -

**خاص ـــ موندل/ميندل**:- په څهٔ خاص کار يا فن وغېره ډېر زيات شهرت حاصلوول - ډېر مشهورېدل -

**د ـــ تنده**:- (ت+ن+دَ) د شهته هسه - د شهرت موندلو سخت خواهش -

**شهر** :- (شُ+ه+رَ) (ع ، اس - مو ، ج - ے) (و------ شهرت)

**ـــ افاق**:- (آ+فا+ق) (عف تر - صف) په افاقو کښې مشهور شوے - هغه کس چې يا څيز په درسته دنيا کښې ئې نوم خور وي - ټوله دنيا کښې مشهور شوے

**ـــ خورېدل**:- مشهورېدل - په کوم خاص فن يا کار وغېره کښې نوم خورېدل - مشهورېدل -

**شهريت**:- (شَ+ه+ري+يَ+ت) (ف تر - اس - مذ ، ج - ونه) په ښار کښې د اوسېدو قوانين او قاعدې په يو ښار يا ملک کښې د اوسېدو حقوق لرنه -

**شهلا**:- (شَ+ه+لا) (عف - اس - مف) (۱) هغه چې توروالے لري - تورې سترګې (۲) د نرګس په شان سپينې وي - خو د ننه کتورۍ ئې توره وي - ځکه په شعر کښې د ښکلې معشوقې تورو سترګو له ورسره تشبيه ورکولے شي - عموماً نرګس شهلا وئيلے کېږي -

تور باڼهٔ ئې تور توبري دي راځر خبرې
کـه راپورته محبوبا سترګې شهلا کا (خوشحال)

**شهسوار**:- (شَ+ه+سَ+وا+ر) (و---- د "شه" تر لاندې)

**شهسواري**:- (شَ+ه+سَ+وا+ري) (و------- د "شه" تر لاندې)

**شهلا سترګې**:- د شهلا د ګل په شان سترګې - تورې سترګې -

عاشق سترګې کا په خوب د عدم پټې
چې جدا ترې د معشوق سترګې شهلا شي (حافظ)

**شهنائي**:- (شَ+ه+نا+ئ) (اس مو ، ج - انې) لويه نا ے - لويه سرنا - يو خاص قسم مشهور ساز دے - چې وادهٔ ښادۍ سره خاص تعلق لري -

**شهند** :- (شَ+ه+ن+د) (اس - مذ ، ج - ان) مشهور ښکاري مارغهٔ دے - شاهين -

پـــه هغه بـــازار به څهٔ سود و سودا کړې
چې قارغهٔ په کښې قدري دے تر شهند (خوشحال)

**شهنشاه** :- (شَ+ه+ن+شا+ه) (ف تر -اس -مذ) (۱) د شاهانو شاه -د بادشاهانو بادشاه -د باچایانو باچا -هغه باچا چي ځیني نور باچایان ئې ماتحت وي -یا ئې خراج ګذاري وي -مراد تري لوی باچا دے -

چي د دؤر شهنشاه د ذم لائق شو
د غندني ګنه هر یـــو اق سقال (خوشحال)

(۲) پخوانو ځینو باچاهانو به د لقب په طور استعمالولو -

**شهنشاهي** :- (شَ+ه+ن+شا+هي) (ف تر -اس -مو) د باچاهانو د باچا حکومت -لویه بادشاهي -

**شهنشاهیت** :- (شَ+ه+ن+شَا+هي+يَ+ت) (اس -مو) د بادشاهانو د بادشاه حکومت

**شهنکے** :- (شَ+ه+نَ+کے) (اس -مذ ، ج -کی) یو قسم پخوانے ټوپک -

نامردانو غوندي مخے شهنکي کا
سپیني ږیري سره ټول مـرد کي کا (خوشحال)

**شـــهو** :- (شَ+هـو) (اس -مـع -مـو) (۱) هیروئینـه -چـي د "تـوردلي" (یـا دلـے) معشوقه وه -(و---- شهی) -(۲) هره ښکلې ښځه -معشوقه -

**شهوات** :- (شَ+ه+وا+ت) (ع -ج) د شهوت جمع ده -شوتونه -(و---- شهوت)

**ـــــ نفساني**:- (نَ+ف+سا+ني) (عف تر -ج) نفساني خواهشونه -هغه خواهشونه او غوښتې کومې چي د انسان نفس غواړي عموماً د جنسي غوښتنې -زنا وغیره په حقله وئیلے شي -

**شهواني** :- (شَ+ه+وا+ني) (عف تر -صف) شهوت سره تعلق لرونکے -جنسي خواهش سره تعلق لرونکے -د زنا کارۍ متعلق -

**ـــــ خواهشات**:- (خ+وا+ه+شا+ت)

**ـــــ خواهشونه**:- (خ+وا+ه+شُو+نَ) (و---- شهوات نفساني)

**شهوت** :- (شَ+ه+وَ+ت) (ع -اس -مذ ، ج -ونه) خواهش -د زړهٔ غوښتنه -ارزو -د مدتونو خواهش عموماً د جنسي تعلق په حقله وئیلے شي -د ښځې خاوند یا د ښځې او سړي په حقله کښې د یو ځاے کېدو خواهش -

یو غفلت بل جهالت دریم شهوت دے
د خوشحال د ځان بلا دي هم دا درے (خوشحال)

**ـــــ انګېز**:- (ا+ن+ګې+ز) (عف تر -صف ، مذ ، مو -ه) هغه څیز چي د بنیادم شهوت پرې زیاتېږي د جنسي عمل د کولو خواهش راولاړېدوونکے -

**ـــــ پرست**:- (پَ+رَ+س+ت) (عف تر -صف مذ ، مو -ه) هغه کس چي د شهوت یا د جنسي کارونو شوق لري -زنا کار -بد کار -

**ـــــ پرستي**:- (پَ+رَ+س+تي) (عف تر -اس ، مو) د شهوت پالنه -جنسي شوق لرنه -زناکاري -بدکاري -

**شـــهوتنه**:- (شَ+ه+وَ+ت+ن+رَ) (صف ، مو ، ج -رې) د شهوتي تانیث دے -(و---- شهوتي)

**شهوتي**:- (شَ+ه+وَ+تي) (اس -فا ، مذ ، ج -ان) هغه کس چي ډېر شهوت لري -شوت پرست -زنا کار -بد کار -

**شـــهود**:- (شُ+هُو+د) (ع -اس -مـذ) (۱) حاضرېدنه -ګـواه کېدنـه -(۲) لیدنـه -کتنه

**وحـــدت الشـــهود**:- (وَ+ح+دَ+تُ+ش+شُ+هُـو+د) (ع -اس -مـذ) هـر څـهٔ کښـي د خداے پاک جلوه ښکاري -د صوفیانو په اصطلاح کښې د سالک د هغې درجې نوم دے چي سالک یو داسې مقام ته اورسي چي هغه ته په کل موجودات بلکې په هر څیز کښې ورته د حق جلوه ښکاري -

**شهودي**:- (شُ+هُو+دي) (ع -اس -صف) شهود سره تعلق لرونکے -اصلاحاً هغه کس چي د "وحد ت الشهود" عقیده لري -(و---- وحد ت الشهود)

**شهور**:- (شُ+هُو+ر) (ع -ج) د "شهر" جمع -میاشتې -

**ـــــ معلومات**:- (مَ+ع+لُو+ما+ت) (عف تر -اس -ج) معلومې میاشتې -اصلاحاً هغه څلور میاشتې چي مسلمانان ئې مقدسې ګڼي -عربو به پخوا راسې په دې څلورو میاشتو کښې جنګونه ، شوکې ، قتل وغېره نهٔ کول چي د حج د پاره خلق په امن سره تلے راتلے شي -په اسلام کښې هم دغه څلور میاشتې د قدر و احترام ګڼلې شي -دا د ذولقعده ، ذولحجه ، محرم او د رجب میاشتې دي -(ځیني خلق د رجب په ځاے د شوال میاشت شمېري خو عام طور سره همدغه برنۍ څلور میاشتې دي -

**شـــهی**:- (شَ+هَ+ی) (اس مـع) (۱) د یـوې مشـهورې پښـتنې رومـاني قیصـې هیروئینه یعني معشوقه چي عاشق ئې تور دلے وۀ چي عام طور سره "دلے" یادېږي -وائي چي دے یو ډېر ماهر غل او ډاکه مار وۀ -د وادهٔ په شپه شهی ورله پېغور ورکړو چي تا جوړ ماله د اکبر باچا د لور اوده سرېز هار راوړے دے -دلي غېرت وخوړو او هم هغه مال د اکبر باچا د لـور هـار د راوړلو د پاره روان شو خـو د خپلې د یـوې غلطۍ په وجه ونیولے شو (۲) د پښتو په شاعرۍ کښې د هرې معشوقې د پاره د شهی نوم استعمالېږي -

خوار خوشحال چي په کښې پربوت وتے نهٔ شي
څـــهٔ بـــلائې د شهی چـــاه زنـخـه (خوشحال)

**شهي**:- (شَ+هي) (ف تر -صف) (و---- شهانه)

**شهید**:- (شَ+هي+د) (ع -اس -مذ ، ج -ان ، مو -ه) (ع ج -شهداء)

(۱) هغه کس چي د خداے په لار کښې ووژلے شي -(۲) د الله پاک یو صفاتي نوم دے -یعني هره خبره یا کارپېژني که څرګند الله تري خبر دے

**ـــــ کربلا**:- (دَ+کَ+ر+بَ+لا) حضرت امام حسین علیه السلام تري مراد دے چي د کربلا په مېره کښې شهید کړے شوے دے -

**ـــــ ناز**:- (نا+ز) (ف تر -اس -مذ) هغه کس چي د ناز (کیځ مکیځ) د لاسه شهید شوے وي -شاعرانه اصطلاح ده -مراد تري عاشق دے -مئین-

**ـــــ کول**:- (۱) د خداے پاک په لاره کښې په غزا کښې وژلے کېدل -(۲) بې ګناه بې خطا وژل-

**ـــــ کېدل**:- (۱) د خداے په لاره کښې په غزا کښې وژلے کېدل -شهادت موندل -(۲) بې ګناه بې خطا وژلے کېدل -(۳) شرمنده کېدل -خجل کېدل -لکه په دې خبره هغه ډېر شهید شو-

**شهیدي** :- (شَ+هي+دي) (اس -مو) شهید کېدنه -شهادت -د حق د پاره وژلے کېدنه-

چي د تـوره د غـمـزو راتـه تېرهٔ کړه
اوس خو بهٔ شهیدي شوه ستا وراندې (خوشحال)

**شهیر** :- (شَ+هي+ر) (ع -صف ، مذ ، مو -ه) مشهور شوے -هغه کس چي شهرت ئې موندلے وي چي نوم ئې خور شوے وي او هر خواته ئې خلق پېژني-

**شهیق** :- (شَ+هي+ق) (ع -اس -مذ) د خرې اواز -

**شهین** :- (ش+هي+ن) [اس -مذ] (۱) یو ښکاري مارغه -شاهین -(۲) یو قسم وړه تویه

**شـئ** :-(شَ+ئ) (فعل) (۱) د کېدل مصدر نه د امر صیغه ده -(۲) د ماضي تمنائي او شکیه لاحقه ده -د جمع مخاطب د پاره راځي -

**شئي** :- (شَ+ئي) (اس -صوت) په سخت ګرم څیز باندې د اوبو (د څاڅکو) د پرېوتو اواز -

**ـــــ شئي**:- (شَ+ئي+) د شئي په شان متواتر اواز -لکه د اوبو د یشبدو -یا د براس د ختو اواز-

**شیئیار** :- (شَ+ئ+یا+ر) (اس -صوت) د شئي شئي اواز -(و---- شئي)

**شي** :- (شِي) (لاحقه) د ماضي تمنائي او شکیه وغېره په اخر کښې لګېدونکے

- لاحقه - لکه که هغه راشي - د واحد او جمع غائب د پاره راځي -

**شي** :- (شِي) (اس - صوت) د چرګانو د شړلو اواز -

**ـــــ کول**:- د چرګانو د "شي" اواز سره شړل - کړي کول -

**ـــــ کېدل**:- د چرګانو د "شي" اواز سره شړلے کېدل - کړي کېدل -

**شے** :- (شَے) (ف ، اس مذ ، ج - شییونه/شیان ، ع ، ج ، شیاء) څیز - (ف چیز - شے)

**ـــــ متنازعه**:- (مُ+تَ+نا+زِ+عَ) (ع تر - مو) هغه څیز چې د دوه ؤ کسانو یا د دوه ؤ ډلو پرې جګړه وي - د جګړې اصل -

**ـــــ مرهونه**:- (مَ+ر+هُو+نَ) (ع تر - اس مذ) هغه څیز چې ګانه کښېښودے شوې وي - ګانه کړے څیز - رهن کړے څیز -

**ـــــ موهوبه**:- (مَو+هُو+بَ) (ع - تر - اس - مذ) هغه څیز چې هبه شوے وي - یعني په خبرات کښې ورکړے شوے وي - هبه کړے څیز -

**شے** :- (شے) (لاحقه) فعلي لاحقه ده - د تمنائي ماضي د واحد حاضر صیغې د جوړولو د پاره پکاروولے شي - بلکې جوړ شوے وران شوے وغیره -

**شي**:- (شِي) د "شے" اضافي یا مجروري صورت -

**شیاځه**:- (ش+یا+(د) زَ)(اس - مو ، ج - ځې) ښځه - د کاني هغه تخته کوم چې د قبر سر ته (او پینو) ته ودرولے شي - ښاځه - خازه -

**شیاطین**:- (شَ+یا+طِي+ن) (اس - ج) د شیطان جمع ده - ډېر شیطانان-

**ـــــ الانس**:- (نُ+ل)+ا+ن+س) (ع - تر - ج مذ) هغه شیطانان چې د انسانانو نه دي - هغه بني ادم چې د شیطانانو کار کوي -

**شیان**:- (شَ+یا+ن) (اس - ج) د "شے" جمع ده - شیونه -

**شېب**:- (شې+ب) (ع - اس) بوډاتوب - زوړوالے - بوډاوالے -

کلـــه خیلــــه پخــــه غله روده شي
څۀ امید به ته په شېب و په شباب کړے (خواجه محمد)

**شېب خېل**:- (شې+ب+خېل) (اس - مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د داني خېلو څانګه ده او داني خېل ، متکئي ، ملک شاهي ، ولي خېل ، اتمانزئي ، درویش وزیر دي -

**شېب خېل**:- (ددغه) (اس مع) د پښتنو یوه قبیله ده - چې د میر احمد خېلو څانګه ده او میراحمدخېل ، علي شېر زئي ، لشکر زئي اورکزئي دي -

**شېبره**:- (شې+ب+رَ) (اس - مو - ج - رې) د تبو یو قسم دے چې اوږده وي - د محرقې تبه -

ښائي چې اوس مرم چې دمه رانه کړه غمونو
تبه چې واريــزه وه ، شپیږه رتبجـــن شــوه (علي خان)

**شېبره**:- (شې+ب+رَ) (ق - اس - مو)اساني - سهولت -

**شېبو**:- (شې+بو) د شېبې (جمع) اضافي یا مجروري حالت -

**په ـــــ وربدل**:- ډېر باران وربدل - زیات باران وربدل-

**په ـــــ شېبو وربدل**:- د باران تېز او تر ډېر ساعته پورې وربدل -

که په شېبو باران وربږي
زما په خپل اشنا باور دے رابه شینه (ټپه)

**شېبه** :- (شې+بَ) (اس - ظر) د وخت یوه لږه شان حصه - لږ شان وخت - ساعت ساتـ -

**ـــــ په شېبه**:- (پَ+شې+بَ) ساعت په ساعت - لږ لږ ساعت پس لږ لږ وخت پس - دمه په دمه - ګړۍ په ګړۍ -

**ـــــ کول**:-تر یوې شېبې (ساعته) پورې یو کار متواتر کول - لکه: سحر مې هم پرې یوه شېبه کړې وه -

**په یوه ـــــ کښې**:- په لږ ساعت کښې - زر - په یوه ګړۍ کښې - (عموماً شېبه د ګړۍ نه اوږد وخت ته وائي) -

**ښــه ـــــ**:-(خَ/ش) (اس - مو ، ج - ښې شېبې) اوږده شېبه - ډېر ساعت - کافي وخت

**شېبه** :- (شې+بَ) (اس مو ، ج - بې) د تېز باران مسلسل وربدنه - تېز مسلسل باران-

**ـــــ نیمه**:-(نې+مَ) (اس مو) د شېبې نه نیمه یعني کوم وخت لږ ساعت - لکه یو شېبه نیمه پس به راورسي -

**شنه** :- (شَ+ن+ړَ) (پ تر - اس ، مو ، ج - ګنې شېبې) تېز باران - د غټو غټو څاڅکو تېز باران -

تـۀ چې له ما درومې دا د اوښکو باران ګوره
رخ د سفر هېڅ نۀ دے په دا ګنو شېبو کښې (رحمان بابا)

**شیبه** :- (شي+ب (ه) [ ق - اس - مو] یو قسم ملغلره -

**شیب** :- (شي+پ) (انګ - اس) اصلاً خو ګډې یا (ګنو) ګډو ته وائي خو په ترکیب کښې شینک سره راځي -

**ـــــ شپنک**:- (شي+ن+ک) (انګ تر - اس - مذ) یو خاص قسم غوټه ده چې عموماً د یو اوږد مزي یا د پړي د لنډولو دپاره پکارېږي -

**شپپ** :- (شي+پ) (انګ - اس ، مذ ، ج - ونه) شکل - بڼه - وضع -

**شیت** :- (شِي+ت) (صف - مذ ، مو - ه) چیت -

**شبت** :- (ش+ت) (اس - مذ) شیډ -

**شیتاخېل** :- (شي+تا+خیل) (اس مع) د پښتنو یو قبیله چې د ایسوریو څانګه ده اوایسوري ،تیپۍ زاد داوړ دي -

**شیتان** :- (شے+تا+ن) (ق - اس مع) د شیطان بدل شکل دے - (و----- شیطان)

**ـــــ خوټ**:- (خُو+ټ) (ق - اس - مذ) (۱) یوه حشره (چینجے) ده چې د نرۍ خاورې د لاندې وي - کولو (۲) د هلکانو د یوې لوبې نوم چې وړوکي فټبال سره کولے شي - شګو شیطان هم ورته وائي - (ق) -

**شیت په شیت** :- (شي+ت+پَ+شي+ت) (تف) تیت و پرک - خوروور - پرېشانه -

**شیتر** :- (شي+ت+ر) (ق - اس - مذ) ستغ او شډل یا غټ توکے -

**شیتړ** :- (شي+ت+ړ) (و----- شپتر)

**شیتک** :- (شي+ت+ک) [اس مع - مذ] بوقي - د بنو د علاقې خلق ، بنوڅي

د هر چا سره چې کښېني هم هغه شي
اوس مې نیمه ژبه خوښه شوه شیتک یم (خوشحال)

**شیتک** :- (شي+ت+ک) (صف - مذ ، مو - ه) ګنګوره - ترې ترې - چارا - توړے-

**چیتکي** :- (شي+ت+کي/کې) (اس - مذ/مذ) ګنګوړتیا - ترې ترې والے - ګاګیلي - چاړوالے -

**شیته** :- (شي+تَ) (اس - صف ، مو ، ج - شیتې) ویړه - وازه -

**ـــــ خولۀ**:- (خُ+ل) (۱) ویته خوله - وازه خوله - (۲) لویه خولۀ -

**ـــــ خولۀ نیول**:- وازه خولۀ نیول - حېران ودربدل - شرمنده کېدل -

**شـــیته** :- (شـــي+تَ) (ق ، اس - اس - مـــو ، ج - تـــې) (۱) یـــو قســـم مرغـــۍ ده (۲) شولولې سپینته -

**شیتۍ** :- (شـي+تَ+ۍ) (اس - مـو) (۱) د غشـي تـوېرے - پیکـان - (۲) د جـوارو توکه -

ولې ئې لُــورې دا نامه د هغه کس ده
چې خوړلې ئې شیتۍ ستا د هوس ده

**شیټ** :- (شي+ټ) (انګ ، اس - مذ ، ج - ونه) د کاغذ تخته چې خاص پلن والے او اوږدوالے لري - د بل کوم داسې څیز (لکه دهات وغیره) لویه تخته - د اوسپنې یا د جستو شیټ-

**شیته** :- (شي+تَ) (اس - مو ، ج - شیتے) د جوارو وږے چې بنې ترې لا نۀ وي جدا شوې - (وزیري: سِّته) -

**شیث** :- (شي+ث) (اس-مو) د حضرت ادم علیه السلام دریم زوے - هابیل ، قابیل ، مشران وو او دے ئې کشر وۀ - وائي چې د هابیل د قتل کېدو نه پس پیدا شوے وۀ -

**شېخ** :- (شې+خ) (اس-صف ، مذ ، مو - ه) (۱) بوډا - زوړ سړے - (۲) پیر - مرشد - (۳) استاد - عالم فاضل - (۴) په هندو پاکستان کښې هغه سړي ته وئیلے شي چې څوک اصلاً هندو وي خو ورستو مسلمان شوے وي - (۵) د عربو د قبیلې مشر - د قبیلې سردار - (۶) هغه سړے چې چیلم نۀ څښکي یا نسوار نۀ کوي - پښتانۀ هغۀ ته شېخ وائي -

شېخ دے که ملا دے که په علم دانشمند دے
هېڅوک به خلاص نۀ شي په هنر د مرګ له پوره (خواجه محمد)

**—— توره**:- "توره" د طوره بدل شکل دے - (و—— شېخ طوره)

**—— الاسلام**:- (خُ+ل+ا+س+لا+م) د اسلام د دین لوے پېشوا - د مسلمانانو په بادشاهو کښې دا د ملک د دیني مشر عهده ده-

**—— الحرم**:- (ح+ل ح+ر+م) (ع-تر-مذ) د حرم شېخ - د بیت الله شریف مشر - پخوا د عربو د بادشاه (شریف مکّه) یو خطاب وۀ -

**—— رحمکار**:- (اس مع) حضرت کاکا صاحت رحکمار -

د خوشحال تکیه په خدا ے ده
بیا پـه تـا ده شېخ رحمکاره (خوشحال)

**—— الرئیس**:- (خُ+ر) رَ+ئي+س) (ع تر-اس-مذ) د حکیم بو علي سینا لقب دے-

**—— چلي**:- (چ+ل+لي) (اس-مذ) یو فرضي نوم چې د دۀ په حقله د کم عقلتیا او بې وقوفۍ ډېرې قیصې مشورې دي - مجازاً کم عقل او ساده سړي ته وائي - خصوصاً هغه سړے چې داسې عرضي منصوبې جوړوي او خپل زړۀ پرې خوشحاله وي - حالانکه دغه منصوبې سرته د رسېدو نۀ وي - خیالي پولاؤنه پخوونکے -

**—— حسین**:- (اس مع) شېخ حسین واعظ کاصفي - چې په فارسۍ کښې ئې د قران یو تفسیر لیکلے وۀ چې تفسیر حسین نومېږي - ددې تفسیر ترجمه په پښتو کښې هم شوې ده - (م ۹۱۰ ه)-

شېخ حسین ئې مفسر بـلـیـغ فصیح وۀ
د بدۍ نوم ئې په کوم ادبي خصلت ږدي (حافظ)

**—— د بسطام**:- (اس-مع) شېخ بسطامي چې یو مشهور بزرګ تېر شوے دے - د بنګش په زړۀ کښې ډېره شېطاني ده
که پـه خـولۀ و تاته شېخ شي د بسطام (خوشحال)

**—— سدّو**:- (س+د+دو) (ه تر-اس-مذ) د شېخ یو فرضي پیر یا بزرګ چې د هغه د نوم منبتې کوي -

**—— الشیوخ**:- (خُ+ش) ش+یُو+خ) (ع-تر-اس-مذ) د شېخانو شېخ - د شېخانو مشر یا سردار - د مشائخو پیر - ډېر لوے پیر -

**—— طوره**:- (فپ-تر-صف) د شېخانو په شان شېخ په شکل) - وصورت - زاهد - پرهېزګار -

**—— عمر**:- (اس-مع) د څوکنو میا حضرت عمر رحمته الله علیه -

**—— قاسم**:-(قا+س+م) (اس مع) یو لوے عارف او عالم - د شېخ متي رحمته الله علیه له اولاده وۀ - **۹۵۲** ه کښې د اکبر پورې په خوا کښې پېدا شو- نومې کلي کښې زېږېدلے وۀ - د مغلو د ظلم خلاف وۀ - څکه جهانګیر باچا د چنار ګړه په قلا کښې بندي کړو او هم هلته په **۱۰۱۲** ه کښې وفات شو - د تذکره الاولیاء افغان لوے تاریخي کتاب ئې لیکلے وۀ-

**—— محمد اکرام**:- (اس مع) د خیبر د درې افریدے پښتون - لوړ عالم فاضل او سبلانے - هند کښې ئې علم حاصل کړو - بیا د یو عالم او متعلم په حېث مصر ، شام ، ترکي ، سفرونه ئې وکړل - او په هر ملک کښې ئې عالمانو بې حده قدر وکړو - اخر ببرته مصر ته راغے او هلته ئې تدریس شورو کړو - او د نوي (۹۰) کالو په عمر کښې **۱۲۸۷** ه کښې هلته وفات شو - د دۀ د شخصیت په حقله دومره خبره کافي ده چې هر کله چې د جامع ازهر شېخ او رئیس باجوړي وفات شو نو د دغې لوړ مقام دپاره د دۀ نوم هم وړاندې کړے شوے وۀ -

**—— ملا**:- (م/مُو+لا (ف تر-اس-مذ) هغه سړے چې هم شېخ (پرهېزګاره) وي او هم ملا (عالم) وي - عالم پرهېزګاره سړے -

همره زهـد کا عـاشق په هر شپه کښې
چې په درست عمر کښې شېخ و ملا نۀ کا (حمید)

**—— ملي**:-(م+ل+لي) د یوسفزو مندنو پښتنو مشهور مشر - یوسف زي چې د ملک احمد په مشرۍ کښې پېښور ته راغلل نو دې ورسره وۀ او د ملک احمد کلک مرستیال وۀ - د هغۀ رهنمائۍ به ئې کوله - دۀ د یوسفزو د فتح کړې علاقو د وېش په حقله یو ریکارډ تیار کړے وۀ چې د "دفتر شېخ ملي" په نوم یادېږي - ډېر اهم کتاب دے - خو متاسفاً اوس بېخي ورک دے - د دۀ قبر په سوات کښې معلوم کړے شوے دے -

**—— وشاب**:- (خو+شا+ب) (ع تر-اس) بوډا او ځوان - زوړ سړے او زلمے - لوي او واړۀ

چې دا هسې ارت ملک په خپل سر تنګ کړي
پـه قلوت کښې دې څۀ سود دے شېخ وشاب (خوشحال)

**شېخ** :- (شې+خ) (اس-مع) د پښتنو قبیله - د کاسیانو څانګه ده -

**شېخ** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو یو قبیله ده - د بهرام زیو څانګه ده - خجک پنې دي

**شېخ** :- (ددغه) (اس مع) د پښتنو یو قبیله ده چې د عمر زیو یو څانګه ده - چې خجک پنې دي -

**شېخ** :- (ددغه) (اس-مو) د پښتنو یو قبیله ده - د مخیانو یو څانګه ده-تور ترین دي-

**شېخ یا هادي خېل** :- (شې+خ) یا (ها+دي+خېل) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده - مندو خېل دي -

**شېخان** :- (شې+خا+ن) (اس-مع) د پښتنو قبیله - چې د خدي خېلو څانګه ده - او خدي خېل ، ملي زاد داوړ دي -

**شېخان** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې د قاسم خېلو یوه څانګه ده او قاسم خېل ، سورن خېل ، بابکري ، سپاه افریدي دي -

**شېخان** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده - چې د کرون خېلو یوه څانګه ده او قارون خېل ، اسد خېل ، میتاخان خېل ، کوکي خېل افریدي دي -

**شېخان** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو دیوې قبیلې نوم دے چې د اورک زیو همسایه دي - وائي چې اصلاً دا وزیر دي او د افغانستان په ګردیز کښې آباد وو - ورستو لـه هغـه ځایـه راوکوچېدۀ او د اورک زو د همسایۀ پـه طور موجوده علاقه کښې باد شول - بازید خېل ، عمرزي او سوځي د دوي شاخونه دي-

**شېخ بازید خېل** :- (شې+خ+با+زي+د+خېل) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله چې د زلي خېلو څانګه ده او زلي خېل ، بومي خېل ، نصر دین خېل ، کالو خېل ، احمد زي ، درویش خېل وزیر دي -

**شېخ برید خېل** :- (شې+خ+بَ+ري+د+خېل) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ، چې د نقرب خېلو څانګه ده او نقرب خېل ، خوئیداد خېل ، ګړي خېل ، منزي ، علي زي محسود دي -

**شېخ بودین** :- (شې+خ+بو+دي+ن) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې د سردي خېلو څانګه ده او د سردي خېل ، بقاخېل ، ولي خېل ، اتمانزئي ، درویش خېل وزیر دي-

**شېخ بودین خېل** :- (شې+خ+بو+دي+ن+خېل) (اس-مع) د پښتنو قبیله چې د

وُودن خېلو څانګه ده او وودن خېل ، یا ووډن خېل، حضرت خېل ، ولي خان خېل ، سرکي خېل ، مده خېل ، ابراهیم خېل ، اتمان زئي ، درویش خېل وزیر دي -

**شېخ حسن** :- (شې+خ+حَ+سَ+ن) (اس-مع) د پښتنو یو قبیله چې د تاجي خېلو څانګه ده او تاجي خېل ، بومئ ، نصرې ، کالو خېل ، احمد زئي ، درویش خېل وزیر دي -

**شېخ خېل** :- (شې+خ+خېل) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې د ایپ خېلو څانګه ده او ایپ خېل ، سالارزئي ، الیاس زئي ، بنیر وال دي -

**شېخ خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده - د عیسٰی زیو یوه څانګه ده چې ترکاڼي دي -

**شېخ خېل** :- (ددغه) (اس-مع) دا د اوساخېلو یوه وړه څانګه ده او اوسا خېل ، ملیزئي ، خوزه زئي ، اکوزئي ، یوسف زئي دي -

**شېخ دو** :- (شې+خ+دَو) (اس-مذ ، ج-ګان) مشهور مارغهٔ دے - شیشړ - بتخک

**شېخ زئي** :- (شې+خ+زَ+ئ) (اس-مع) د پښتنو یو قبیله ده - د مّسې زیو څانګه ده او مسّې زئي ، هني ، پاریزن ، سنځر خېل کاکړ دي -

**شېخ زئي** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو یو قبیله ده چې د هوتک یو څانګه ده - غلځي دي -

**شېخ عبدل خېل** :- (شې+خ+عَ+ب+د+ل+خېل) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې د ګنګي خېلو څانګه ده او ګنګي خېل ، بومئي ، نصرئي ، کالو خېل ، احمد زئي ، درویش خیل وزیر دي -

**شېخ علي** :- (شې+خ+عَ+لي) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د نرمي خېلو څانګه ده او نرمي خېل ، بقا خېل ، ولي خېل ، اتمان زئي ، درویش خېل وزیر دي -

**شېخ علي خېل** :- (شې+خ+عَ+لي+خېل) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د ابا خېلو یوه وړه څانګه ده او اباخېل ، کوزسوزلیزئي ، بائیزئي ، اکوزئي ، یوسف زي دي -

**شېخ علي خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د کَمَرو یا کمرخېلو ، یوه څانګه ده چې افریدي دي - د شېخ علي خېلو څانګې دا دي - تورخېل ، تلي خېل ، حسن خېل ، او کوزي خېل، (په بله شجره کښې یواځې د تور خېلو نوم لیکلے دے) -

**شېخ عمرے** :- (شې+خ+عُ/عو+م+رے) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې د پیراخېلو څانګه ده او پیرا خېل ، جلال خېل ، ملک شاهي ، ولي خېل ، اتمان زئي ، درویش خېل وزیر دي-

**شېخ مل خېل** :- (شې+خ+م+ل+خېل) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د قمبر خېلو او یدویو ښاخ دے - د شېخ مل خېلو څانګې دا دي - میران خېل ، یرن خېل ، فائم خېل ، علي خېل او سلېمان خېل -

**شېخ مل خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله - چې د شینوارو د علي شېر خېلو بیاه څانګه ده -

**شېخ ملي خېل** :- (شې+خ+م+لي+خېل) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د ابراهیم خېلو یوه وړه څانګه ده او ابراهیم خېل ، علي ګران ، ماموزئي ، لشکرزئي ، اورکزئي دي -

**شېخ میر خېل** :- (شې+خ+مي+ر+خېل) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې د جان بیګ خېلو څانګه ده او جان بیګ خېل ، علي خان خېل ، سرکي خېل ، مده خېل ، ابراهیم خېل ، اتمان زئي ، درویش خېل وزیر دي -

**شېخ وادي** :- (شې+خ+وا+دي) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې د شادي خېلو څانګه ده - او شادي خېلو ، بوراخېل ، مهمت خېل، اتمان زئي ، درویش خېل وزیر دي -

**شېخ وال** :- (شې+خ+وا+ل) (اس-مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې پخئي یوه څانګه ده او پخئي ،بډئي ، زخا خېل ، افرید دي-

**شېخو خت** :- (شې+خَو+خَ+ت) (ع-اس-مذ) بډا توب-بوډا والے-زوړ عمر- (د پنځو سوو کالو نه د بره عمر) -

**شېخئ** :- (شې+خَ+ئ) د "شېخئ" اضافي یا مجروري شکل -

**شېخي** :- (شې+خي) (اس-مو) د شېخانو کار - پرېز ګاري - له بدو ځان ژغورنه

ما دا هسې شېخي دوي وته بخښلې (خوشحال)

—— **اخیستل**:- شېخي اختیارول - شېخ کېدل-

کله شېخي واخلې په حلقه د درویشان شې
کله دانشمند ملا دانا د درست جهان شې (خوشحال)

د —— **لافې ویشتل**:- د پرهېز ګارۍ په حقله ډوزې ویشتل -

**شېخے** :- (شَې+خَے) (ق-اس-مذ) د ګډو د یو مرض نوم دے -

**شېخے** :- (شې+خَے/خَ+ئ) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د ګراریو څانګه ده او ګراري ، شمي خېل ، چلي خېل ، منزئي ، علي زئي محسود دي -

**شېخے** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د اناتي یو ښاخ دے - او بډئي زخاخېل ، افریدي دي - د شېخي دوه څانګې دي - محب خېل او سب خېل بیا د محب خېل څانګې دا دي - رحیم خېل ، اختیار خېل او احمد بېګ خېل ، او د سب خېل څانګې دا دي - کتیا میرخېل ، فتح خېل ، او صاحت خېل -

**شېخېن** :- (شې+خے+ن) (ع-تشنبه) (۱) دوه شېخان - (۲) حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه - (۳) ځینې وخت امام اعظم ابو حنیفه او د هغه شاګرد امام ابو یوسف ته هم وائي - (خصوصاً چې په مسئله کښې دواړه متفق شي) -

**شید** :- (شَے+د) (ف-اس) (۱) دوکه - فرېب - ټګي برګي -

د خورشید د شیده هېڅ اسوده نهٔ شوم
یو خر دل سُود ئي رانه کړے بې له زیانه (حافظ)

(۲) "شید" د خورشید مخفف هم دے خو په پښتو کښې ئي استعمال نهٔ شته -

**شیدا[ې]** :- (شے+د) د "شودو" مخفف دے -

—— **لوښے**:-(لو+خے/ښے) د شودو لوښے - د پیو لوښے -

**شید** :- (شے+د) (د شاید مختصر شکل دے) -

**شیدا** :- (شے+دا) (ف-صف) عاشق - مئین -

بنهٔ مخ په شال ګل شه زړهٔ زما لکه بلبل شو
شیدا بلبله هر چېرته چې ګل دے هوریلې (خوشحال)

—— **کول**:- عاشق کول - مئینول -

—— **کېدل**:- عاشق کېدل - مئینېدل -

**شیدا**:- (شے+دا) (اس-مع) کاظم خان شیدا - د خوشحال خان ختک نمسے - د پښتو مشهور شاعر -

**شیدانکه** :-(شے+دا+ن+کَ) (ق اس-مو ، ج-کې) یو قسم بوټے دے -

**شیدائي** :- (شې+دا+ئي) (ف-صف) (۱) عاشق-مئین-دځهٔ څیز یا بني ادم ډېر زیات خوښونکے - (۲) عشق - مینه -

په پېغور په تور په زور به ځني نهٔ ځي
د هر چا خپله بخره شیدائي ده (خوشحال)

**شیدو** :- (شے+دو) (اس-مع) د نوښار په ضلع کښې د اکوړي نه یو څو میله فاصله کښې یو کلے دے - د مجاهدینو او د سکهانو یو لوے جنګ دلته شوے وهٔ - یو متل هم مشهور دے چې د خداے له دره ئې روزي

خلاصه شي - نو شپه ورله راوړي -

**شپدے** :- (شِے+دے) (اس - جم) شوده - پې -

**ـــــ اوغوړي کېدل**:- يو بل سره کلک ګډون لرل - ډېره دوستي او مينه لرل - شېر او شکر کېدل -

**ـــــ رودل**:- پې رودل - د مور د تي نه د ماشوم پې څښکل -

**ـــــ سره ايله کول**:- په خپله کښې ډېره زياته مينه او دوستي لرل -

**ـــــ سره پرېښل**:- (وـــ شپدے سره ايله کول)

**ـــــ کول**:- د غوا مېښې وغېره پې کول -

**ـــــ والا**:- (وا+لَ) پيو والا - پې خرڅوونکے - دودي -

**ـــــ وريجې**:- (و+ري+جې/ژي) (ق - اس - مو) هغه وريژې چې په پيو کښې پخې شوې وي - شير برنج -

**ـــــ وغوړي کېدل**:- په خپله کښې ډېر دوستانه کېدل - په يو بل ډېر مهربانه کېدل په خپله کښې مينه محبت پيدا کېدل -

**ـــــ اوچې**:- (او+چے)

**ـــــ وچې**:-(و+چے) وچ کړي پې - د پيو پوډر -

**شپديارہ** :-(شي+د+يا+رَ) (وـــ شد يارہ)

**شپږ** :- (ش+ږ) (انګ - اس ، مذ ، ج - ونه) د سوري ځاے - پوخ ځپر - لکه د ټانګو شپږ

**شپږ** :- (شي+ږ) (انګ - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) سورے - سايه - (۲) د آرټ يا ډرائينګ په ماډل کښې تيارۀ طرف - (د "لائټ" رڼا په مقابله کښې) -

**ـــــ ورکول**:- په آرټ يا ډرائينګ کښې د ماډل تيارۀ طرف په رنګ يا پنسل سره ښودل

**ـــــ لائټ لاو**:- (لا+ئ+ټ+(آ+و) (انګ - تر - اس - مذ) رڼا او تياره - په ارټ يا ډرائينګ کښې د ماډل روڼ طرف او تيارۀ طرف يا د روڼ طرف رڼا او د تيارۀ طرف تيارۀ -

**لائټ ـــــ ښودل**:- په آرټ او ډرائينګ کښې په ماډل کښې د روڼ طرف په مقابله کښې تيارۀ (توربخن) طرف په رنګ يا پنسل وغېره سره نمايانه کول -

**لېمپ**ـــ-(ل+م+پ) (انګ - اس - مذ) د لېمپ د پاسه د کښېښودو هغه څيز چې چارپېره رڼا پرې بنده شي او صرف په ښکته طرف (مېز وغېره) باندې پرې ووځي -

**شپږنګ** :- (شي+ږ+ن+ګ) (انګ - اس) په تصوير وغېره کښې د سوري طرف په رنګ يا پنسل سره ښکاره کول - د سوري مخ ښکاره کولو د پاره رنګ ورکول

**شپږنګ** :- (ش+ږ+ږ+ن+ګ) (انګ - فع) کمول - کم کول (مقدا)

**ـــــ لوډ**:- د بجلۍ د پاره استعمالېږي - يعني د بجلۍ کم استعمال کول -

**شپړ** :- (شي+ر) (ف - اس - مذ ، ج - ان) (۱) زمرے - مزرے - امزرے - مشهور ځنګلي داړونکے ځناور دے -(۲) مجازاً بهادر - زړۀ ور - مېړنے - (۳) د نارينۀ په نومونو کښې هم راځي -

**ـــــ آبي**:- (آ+بي) (ف تر - اس - مذ) د اوبو زمرے - مګر مچه ته وائي -

**ـــــ افګن**:-(ا+ف+ګ+ن) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) د زمري غورځوونکے - د زمري راپرزوونکے - مجازاً ډېر زور واله - ډېر بهادر - تورزن - مېړنے -

**ـــــ ببر**:-(ب+ب+ر) (ف تر - اس - مذ ، ج - ان) د زمرويو قسم - چې د عامو زمرو نه لوے وي او په څټ او سر ئې لوے لوے وېښتۀ وي - په زور کښې هم په نورو زمرو بر وي ځکه ورته د ځنګل باچا وائي - زيات تر په افريقه کښې موندے شي -

**ـــــ بچه**:-(ب+چ) (ف تر - اس - صف ، مذ ، مو - ئ) (۱) د شپړ بچے - د زمري بچے - (۲) مجازاً تکړه او مړنے هلک يا زلمے - بهادر او زړۀ ور هلک يا زلمے -

**ـــــ پنجه**:- (پ+ن+ج) (ف تر - اس - مو ، ج - ے) (۱) د زمري د لاسونو (د وړاندې پښو پنجه چې نوکونه ئې لوے او ډېر کلک وي-(۲) د (قبډيانو اصطلاح) په جبل کښې د ټټو د صفا کولو کار -

**ـــــ خدا**:-(خُ+دا) (ف تر - اس مع) د حضرت علي کرم الله وجهه لقب دے - شپړ دے خداے - اسد الله -

**ـــــ د اسمان**:- (دَ+ا+س+ما+ن) (فپ تر - اس - مذ) په اسمان کښې د ستورو يو جړميک چې د زمري په شان شکل ترې جوړېږي - د اسمان په دولسو برجونو کښې برج - (فارسي: عربي: اسد) -

**ـــــ دخداے**:- (دَ+خُ+دا+ئے) (اس - مع) د حضرت علي کرم الله وجهه لقب -

**ـــــ دل**:- (د/د+ل) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) (۱) د زمري په شان زړۀ لرونکے - بهادر - زړۀ ور - مېړنے - توريالے - (۲) د نارينه بن د نوم په طور استعمالېږي

**ـــــ ژيان**:-(ژ+يا+ن) (ف تر - اس - مذ)(۱) شلوونکے يا داړونکے زمرے - (۲) مجازاً بهادر - تکړه - تورزن سړے -

**ـــــ قالين**:- (قا+لي+ن)

**ـــــ قالي**:- (قا+لي) (ف تر - صف) د زمري شکل چې په قالين باندې جوړ شوے شي - مجازاً تش د نوم يا د نمائش زمرے -

**ـــــ شپړ کېدل**:- زمرے زمرے کېدل - وړاندې وړاندې کېدل - د بهادرۍ نمائش کول -

**ـــــ کېدل**:- زمرے کېدل - زړۀ ور کېدل -

زمـــانـــه مې د رقيب د لاســه وژني

چې مې سپے ګڼۀ هغه را باندې شپړ شو (رحمان بابا)

**ـــــ ماهي**:- (ما+هي) (ف تر - اس - مذ) د مهيانو (کبانو) يو قسم - ددې مهي د هډوکي نه د چاقوانو او چړو لاسکي جوړېږي -

**ـــــ نيستان**:- ن+ئ+س+تا+ن) (ف تر - اس - مذ) (۱) د ورمو (درګو) د ځنګل زمرے - زوروَر زمرے - (۲) مجازاً ډېر تکړه - زړه ور او بهادر سړے -

**ـــــ يا روبا کېدل**:- يا د ځان ن شپړ جوړول - چې بهادر او پخپله ښکاره (ګټه) کوونکے دے يا ددې په مقابله کښې د ځان نه لومبړه جوړوول چې د بل ښکار (ګټې) ته ناسته وي -

**ـــــ يا ګيدړ کېدل**:- يا شپړ کېدل چې بهادر او زړۀ ور دے يا د ګيدړ په شان يرندوکے او ډرن کېدل -

**ـــــ يا ګيدړه کېدل**:- مجازاً کامياب کېدل يا ناکامياب کېدل - لکه ورځه يا به شپړ ئې يا به ګيدړه -

**ـــــ يزدان**:- (ي+ز+دا+ن) (ف تر - صف) د خداے شپړ - (وــــ شپړ د خداے) -

**ـــــ د خولۀ**:- (خُ+ل) (فپ تر - اس - مو ، ج - لے) د زمري خوله چې هر څۀ څيز د زمري خولې له ورشي نو بيا تر بچ نۀ پاتې کېږي - مجازاً - ډېر لوے افت يا مصيبت چې خلاصېدنه ترې ممکن نۀ ښکاري -

**د ـــــ نوک**:- (نُو+ل) (فپ تر - اس - مذ ، ج - ونه) معنٰي واضحه دي - د زمري د پنجې نوک - دا د ټوټو په طور د ماشومانو په غاړه کښې اچولے شي چې هغه د بلاګانو او تکليفونو نه بچ وي -

**د ـــــ وېښتۀ**:- (وي+خ/ش+ت) (فپ تر - اس - مذ) د زمري وېښتۀ - خصوصاً د زمري د برېتو وېښتۀ - ددې وېښتۀ په حقله خيال دے چې د چا تېر شي نو هغه مري - يا ئې اينه وچوي - په جادو ټونو کښې استعمالېږي يا ئې د جادو ټوټو په خبرو ، قصو کتابونو کښې ډېر راغلي دے -

**شپړ** :- (شي+ر) (اس - مذ) د سکې هغه مخ چې پرې د شپړ (زمري) شکل جوړ

شوے وي - پخوا د پېرنګیانو اولنې دور کښې چې کومې پیسې ټکې جاري شوې وې ، ددغې سکو یو طرف ته برطانوي شاهي نشان (دوه زمري وغېره) جوړ شوي وو او بل طرف ته به ئې تش خط (د سکې قیمت وغېره) وۀ -

**ــــ خط**:-(خ+ط) (ف تر - اس) پخوا د پیرنګیانو اولنې دور کښې چې کومې پیسې ټکې جاري شوې وې، ددغو سکو یو طرف ته برطانوي شاهي نشان (دوه زمري وغېره) جوړ شوے وو او بل طرف ته ئې تش خط (د سکې قیمت وغېره) لیکلے وو - دې یو مخ ته به ئې شېر دے - او بل مخ ته خط

**ــــ خط کول**:- د شېر خط ویشتلو په ذریعه جواري کول -

**ــــ خط ویشتل**:- د څۀ خبرې د فېصلې د پاره سکّه (پیسه ټکه روپۍ وغېره) به بره غورځولے شي - بل کس زر یا بر وائي یا خط یا چې سکه په زمکه پرې ووځي چې د سکې کوم مخ بره وي هغه وګټي - یعنې که ویونکي "شېر" وئیلے وي او د سکې برنې مخ شېر وي نو هغه وګټي او که خط وي نو بایلي -

**شیر** :- (شي+ر) (ف - اس - جم) پی - شودۀ -

**ــــ بها**:-(بَ+ها) (ف تر ، اس - مو) د پیو قیمت - د پیو ورکولو اُجرت -

**ــــ جامه**:-(جا+مَ) (ف تر ، اس - مو ، ج - مې) د ښځې یا د حېوان تے - د پیولوښے

**ــــ چاے**:-(چا+ے) (فپ تر - اس - مو) (۱) هغه چاے چې د چایو تورو پاڼو په ځاے په کښې د شنو پاڼو چاے (شنه چاے) اچولے شوې وي او بیا پی (شودۀ) هم اچول شوي وي - (که شودۀ په کښې وانۀ چولې شي نو قهوه ترې جوړه شي) - ځینې خلق د پیو اچولو نه وړاندې دغه قهوه د یو لوښي نه بل لوښي ته اړوي رااړوي او هوا ورکوي بیا چې په کښې پی واچولے شي نو ګلابي شان رنګ ئې راووځي په دې ځینې خلق پېروے هم واچوي (کشمیرې چاے هم ورته وائي) -(۲) خړ چاے - (وزیر - کاکړ) -

**ــــ دان**:-(دا+ن)

**ــــ داني**:-(دا+ني) (ف - تر - اس - مو) د پیو لوښے - د شودو لوښے - خصوصاً هغه لوښے چې د چایو لوښو (سیټ) سره یو ځاے استعمالېږي -

**ــــ ګرم**:-(ګَ+ر+م) (ف - تر - صف ، مذ ، مو - ه) نیم ګرم - چې څۀ څیز (پی او بۀ وغېره) ایله ګرم شوي وي - زیات ګرم نۀ وي -

**ــــ مست**:- (مَ+س+ت) (ف - صف) د هوسۍ او بزې وغېره هغه بچے چې خیټه ئې د پیو نه ډک شي او د مستۍ نه ټوپونه وهي -

**ــــ وشکر**:- (و+ش+کَ+ر) (ف تر - صف) داسې مسئله ګډوي لکه پی او شکرې چې سره ګډې وي - ډېر سره خواږۀ او یو شوي -

**شېرا** :- (شي+را) (اس - مو) شېر محمد خان د بنګښو سردار چې د ډوډے په جنګ کښې ئې د خوشحال خان خټک نه ماتے موندلے وه -

شاهي بېګ ساعرے په تن ملک میرے دے
تـــر شـــــېرا اول ددۀ کـــــړې کــــار تمـــام (خوشحال)

**شېر احمد خېل** :- (شي+ر+ا+ح+مَ+د+خېل) د پښتنو یوه قبیله ده چې د یوسف علیو څانګه ده او یوسف علي ، کابل خېل ، ولي خېل ، اتمان زئي ، درویش خېل وزیر دي -

**شیراز** :- (شي+را+ز) (اس - مع) په ایران کښې یو ښار - د فارسۍ ژبې لوے او مشهور شاعران او د قلم خاوندان شېخ سعدي او خواجه حافظ دلته پېدا شوي وو او هم دلته ښخ دي -

پـــه تازه تازه مضمون د پښتو شعر
په معنٰی مې د شیراز او د خجند کړ (خوشحال)

**دعــوتِ ــــــ**:- (دَ+ع+وَ+ت) (ف تــر - اس - مـذ) د شـیراز دعـوت - د شـیراز مېلمستیا - مجازاً - ډېر ساده او بې تکلفه ډوډۍ (وائي چې شېخ سعدي په بغداد کښې د صوامیر مېلمه شو نو امیر په خپله مېلمستیا کښې ډېر تاوان وکړو او ډېر زیات څیزونه ئې پاخۀ کړۀ - سعدي چې ډوډۍ خوړه نو بیا بیا به ئې وې چې ارمان د شیراز دعوت - امیر په دې خبرۀ ډېر حېران شو - څۀ موده پس دغه امیر شیراز ته پېښ شو او د سعدي مېلمه شو او ډېر ساده باده ډوډۍ ئې ورله پخه کړه او هېڅ تکلیف ئې پکښې ونۀ کړو اخر هغه امیر ترې تپوس وکړو چې اے شېخه ! تا د همدغې ډوډۍ ارمان کولو ، سعدي ورته ووې چۀ او ، د همدغې ډوډۍ - امیر لاحېران شو - سعدي ورته ووې چې که زۀ څو ورځې تاسره نور پاتې شوے وے نو تۀ به اخر په ما تنګ شوے وے خو زما دا ساده خوراک داسې دے چې که ته ماسره ډېره موده هم پاتې شې نو زۀ به درباندې هیڅ کله نۀ تنګېږم - ددې نه د دعوت شیراز محاوره جوړه شوه

**شیراز** :- (شي+را+ز) (صف - مذ ، مو - ه) ښیراز - اباد - سر سبز و شاداب - ښېراز -

**ــــ ګرځېدل**:- خوش خوشحاله - اباد - سرسبز - شاداب - ښېرازه کېدل-

**شیراز کېدل** :- (شي+را+ز+خېل) (اس - مو) د پښتنو یوه قبیله ده چې د جلال خېلو څانګه ده او جلال خېل ، ناناخېل ، بهلول زئي محسود دي -

**شیرازه** :- (شي+را+ز) (ق - اس - مو) ماستۀ -

**شیرازه** :- (شي+را+زَ) (ق - اس - مو ، ج - زې) هغه اباد ے یا کور چې د ښار د قلا نه بهر وي -

**شېرازه** :- (شي+را+زَ) (اس - صف مو ، ج - زې) (۱) ښۀ تر و تازه - سر سبزه - ښېرازه (۲) اباده او خوره - ښېرازه - خېرازه -

**شیرازه** :- (شي+را+زَ) (ف - مو ، ج - زې) (۱) د کتابونو د جلد بندي (کاتې ځیزونو) په وخت هغه پټه چې د ګنډلو شوو کاغذونه شاته لګولے شي - یا د پاڼو د جزونو ګنډ - (جلد ورته ددې نه وروستو خېژولے شي) -(۲) جوړښت - سلسله - نظم -

هر چې دل ازار دے که قسمت لري زردار دے
زر بـــه ئې وشلېږي تــار د بخت د شیرازے (حافظ)

**ــــ بندي**:- (بَ+ن+دي) (ف تر - اس - مو) (۱) د کتاب جزونه یا پاڼې جلد ترلو د پاره یو ځاے کول - یا ګنډل - (۲) د قام د وګړو خوړې ورې برخې رایوځاے کول - راغونډول - په نظم کښې راوستل -

**ــــ ترل**:-(۱) د کتاب جزو نه سره ګنډل -(۲) راغونډول - یو ځاے کول - په نظم کښې راوستل - (د خلقو - د قام د وګړو) -

**ــــ خورول**:-(۱) د کتاب د پاڼو یا د جزدان ترل ماتول او خوارۀ وارۀ کول - (۲) د قوم اولس اتفاق او نظم ماتول - خوارۀ وارۀ کول - تس نس کول -

**ــــ خورېدل**:-(۱) د کتاب د جزونو (یا د پاڼو) ګنډل - د پاڼو یا د جزونو تس نس کېدل -(۲) مجازاً د قوم یا د اولس د وګړو اتفاق نۀ پاتې کېدل - نظم نۀ پاتې کېدل -

**شیرازي** :- (شي+را+زي) (اس - مو) (۱) سرسبز و شادابي - تر و تازګي - (۲) وده او ترقي-

**ــــ کول**:وده کول - د ونې بوټي خورېدل - او لوئېدل - سر سبزه کېدل - خېرازه کېدل -

د حمید ځار و قربان ښکلے غره کړه
شـــیرازي کـا لـــه ثمـره بوټي شنډ (حمید)

**شیرازي** :- (شي+را+زي) (ف - اس - مو) (۱) د شیراز ښار سره تعلق لرونکے - د شیرا د ښار اوسېدونکے - (۲) د کونترو یو قسم - ښۀ خوراک ته هم وائي-

شیرازي که ښۀ خوراک وۀ ، وار وۀ تېر شو
لـوکي کـــه ښـــۀ پوشاک وۀ ، وار وۀ تېر شو (خوشحال)

**شیراک** :- (شي+را+ک) (اس - مذ ، ج - ونه) برستن - نالۍ - شیرک -

**شیرک خېل** :- (شي+رَ+ک+خېل) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د صدا خېلو څانګه ده او صدا خېل ، اشپرکا ، کالو خېل ، احمد زئي ، درویش خېل وزیر دي-

**شیراک خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې د حسن زیو یو څانګه ده او حسن زئي ، شتې چې راورک زیو همسایه دي-

**شبراکے** :- (شي+را+کے/کَ+ئ) (اس-مع) د درې پلارو یوه څانګه ده او درې پلار ، پائندے ، نصرالدین او زخا خېل ، افریدي دي- (شبراکو ته حبیبیان هم وائي)-

**شیرالپ** :- (شي+را+ل+پ) (ق-اس-مذ) یو قسم بوټے دے چې زېړ ګل کوي او د رشقې په فصل کښې پیدا کېږي-

**شبران زئي**:- (شي+را+ن+زَ+ئ) (اس-مع) د پښتنو یو قبیله ده چې د بابوزیو څانګه ده او بابوزئي ، نتوزئي ، دومړ ، سنځر خېل ، کاکړ دي-

**شیراني** :- (شي+را+ني) (اس-مع) د پښتنو یوه لویه قبیله ده-د تخت سلېمان په خواؤ شا کښې اباد وو-د دوي دوه لوے ښاخونه دي- یو برغه شیراني او دویم لرغه شیراني-برغه په ژوب کښې اوسي او لرغه په ډېره اسمٰعیل خان کښې-د شیرانو شپږ غټ ښاخونه دي او باخېل ، مړیل ، کپیپ ، هري پال، حسن خېل او جوهر خېل-

**شبرباخېل** :- (شي+ر+با+خېل) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د تور سپر څانګه ده او تور سپر ، ګلے ، ادم خېل ، افریدي دي- (په بله شجره کښې د تور سپر ، (یا یګي خېل) په اولاد کښې د شبر با خېل نوم شته)-

**شبر بیګ خېل** :- (شي+ر+بے+ګ+خېل) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې د پیر داد خېلو څانګه ده او پیر داد خېل ، عبدالرحمان خېل ، نانا خېل ، بهلول زئي، محسود دي-

**شبر جان** :- (شي+ر+جا+ن) (اس-مع) د لورلائي د سیمې یو ننګیالے پښتون چې د پېرنګیانو خلاف ئې توري وهلي وې-پېرنګیانو پانسي کړے وو -په غاړو کښې یادېږي-

**شبر خان خېل** :- (شي+ر+خا+ن+خېل) (اس-مع) د پښتون قبیله چې د خرمچ خېلو څانګه ده او خرمچ خېل ، خواجه خېل ، میامئي ، کابل خېل ، ولي خېل ، اتمان زئي ، درویش خېل ، وزیر دي-

**شبر خان خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې د قاسم خېلو وړه څانګه ده او قاسم خېل ، قیمت خېل ، جوکي، ادم خېل، افریدي دي-

**شبر خان خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د مهمند خېلو یوه څانګه ده او مهمند خېل ،کتیه خېل ، حسن خېل ، متیا خان خېل ، کوکي خېل ، افریدي دي-

**شبر خا خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو قبیله-د موسٰی خېلو یوه وړه څانګه ده او موسٰی خېل ، مخوزئي ، نسوزي ، الیاس زئي بیزوال دي-

**شبر خان خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو یوه څانګه چې د عمر خان خېل یوه څانګه ده او عمر خان خېل ، ملک دین خېل افریدي دي-

**شبرخت** :- (شي+ر+خَ+ت) (اس-مذ) یو قسم جواري-اسک-قرعه-

**شبر خوله** :- (شي+ر+خُ+ل) (ق-اس-مذ) د یو بوټي نوم دے چې زېړ ګونه کوي چې ډانډے ئې د زخم یا د لاس د پښو د چاودلو د علاج د پاره استعمالېږي

**شبر خېل** :-(شي+ر+خېل) (اس-مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې د زیرکو څانګه ده او زیرکي ملي زاد داوړ دي-

**شبر خېل** :-(ددغه) (اس-مع) پښتنه قبیله -د کمبر خېلو (یا کمبوه خېلو) یوه وړه شان څانګه ده او کمبر خېل یا کمبوه خېل ، ایپ خېل ، سالارزئي ، الیاس زئي بنیر وال دي-

**شبر خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د بوهاخېلو څانګه ده او بوهاخېل ،مدوخېل ، اس خېل ، متاخان خېل ، کوکي خېل افریدي دي-

**شبر خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې د متاخان خېل یوه څانګه ده او متاخان خېل ، قمبر خېل افریدي دي-

**شبر خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د غزوخېلو څانګه ده او غزو خېل ، اشرف خېل ، کمال خېل ، صاحب جان خېل ، اکاخېل ، افریدي دي-

**شبر خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې د احمد بېګ خېل څانګه ده او احمد بېګ خېل ، محب خېل ، شیخ ، اکنئ ، بُډے ، زخا خېل افریدي دي

**شبر خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې خواجه حواس خېلو څانګه ده او خواجه حواس خېل ، علي خېل ، دي چې د اورک زیو همسایه دي-

**شبر خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د قیمت خېلو څانګه ده او قیمت خېل ، حېدرخېل ، تیپي او داوړ دي-

**شبر خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې دبریم خېلو څانګه ده او بریم خېل ، پتائتي ، بشي خېل ، علي زئي محسود دي-

**شبر خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې د درې نامو څانګه ده او درې نامي ، بلال خېل ، حسن خېل ، مهمت خېل ، اتمانزئي، درویش خېل وزیر دي-

**شبر خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو د قبیلې نوم دے چې د هیبت خېلو څانګه ده او هیبت خېل ، نانا خېل ، بهلول زئي محسود دي-

**شبر خېل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو یویه قبیله ده چې د فتح خېلو څانګه ده او فتح خېل ، محمد خېل ، حسن خېل مهمت خېل ، اتمان زئي ، درویش خېل وزیر دي-

**شبرداري خېل** :- (شي+ر+دا+ري+خېل) (اس-مع) د پښتنو قبیله ده چې د جلال خېلو څانګه ده او جلال خېل ، شمبر خېل ، هیبت خېل ، نانا خېل ، بهلول زئي محسود دي-

**شبرزئي** :- (شي+ر+زَ+ئ+ي) (اس-مع) د پښتنو یو قبیله-چې د علي خان زئیو څانګه ده او علي خان زئي ، حمزه زئي ، سنځر خېل کاکړ دي-

**شبر زئي خېل** :- (شي+ر+زَ+ئ+ي+خېل) (اس-مع) د پښتنو قبیله-د حسن خېلو څانګه ده او حسن خېل ، ګدائي خېل ، الیاس خېل بنېروال دي-

**شبر شاؤ** :- (شي+ر+شا+ؤ) (ق اس-مذ) یوه وړه تله چې واړۀ څیزونه پرې تللے شي-کنډه-

**شبر شاه** :- (شي+ر+شا) (اس-مع) د هند مشهور پښتنو بادشاه-چې مغل همایون له ئې شکستونه ورکړي او د هندوستان باچاهي ئې تر لاسه کړې وه ۱۵۴۲ ء کښې په تخت کېښناست او ۱۵۴۵ ء کښې وفات شو-د هند په قابل ترین بادشاهانو کښې شمېرلے شي-ددۀ نه پس تر څۀ مودې پورې د دۀ اولاد بادشاهي وکړه چې سوري خاندان بللے شي-

**شبر شاهي** :- (شي+ر+شا+هي) (اس-مو) د تول یوه وړوکې شان پیمانه ده چې شبر شاه سوري ته منسوب ده-

که ګناه مې تر حساب تر شمارې تېر دے
ستا و فضل و ته کم تر شبر شاهي (خواجه محمد)
هغه غم چې په شقال په شبرشاهي وۀ
اوس تر منونو لاافزون شو ښۀ چې شو (خوشحال)

**شبیر شوک** :- (شي+ر+شي+رَ+ک) (ق-اس-مذ ، ج-ونه) هغه هواره زمکه چې ګیاه په کښې ډېره وي-چمن-

**شبر علي خېل** :- (شي+ر+عَ+لي+خېل) (اس-مع) د پښتنو د قبیلې نوم چې د نبک زن خېلو وړه څانګه ده او نبک زن خېل ، نانا خېل، بهلول زئي محسود دي-

**شېرغه خېل** :- (شې+ر+غَ+خېل) (اس - مع) د پښتنو قبيله چې د اتمان زيو يوه څانګه ده او اتمان خېل ، ادين زئي ، خوزه زئي ، اکوزئي يوسفزئي دي -
**شيرک** :- (شي+رَ+ک) (ق - اس - مذ ، ج - ونه) نازک پيو واله جوار چې په فارسي کښې هم ورته شيرک وائي - کچه وګي جور -
**شيرک** :- (شي+رَ+ک) [اس - ذ ، ج - ونه] برستن - شيراک -
**شېرک** :- (شې+رَ+ک) [صف - مذ] زمرے - بهادر -
کـــه خټکو راته شاکړه مخ ئې تور شه
زۀ يوائځې په تکيه د خدا ے شيرک يم (خوشحال)
**شيرکارل** :- (شي+ر+کا+ل) (مص) (و---- شکارل)
**شېرکټئ** :- (شې+ر+کَ+ټَ+ئ) (اس - مو) هغه غوا چې" کالو" سره پې کوي-
**شېرک خېل** :- (شې+رَ+ک+خېل) (اس - مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د ماول خېلو څانګه ده او ماول خېل ، هېبت خېل ، جوکي ، ادم خېل ، افريدي دي - (په بله شجره کښې د ماول خېلو په اولاد کښې د شيرک خېلو يا شيراک خېلو نوم نشته)
**شېرکه** :- (شې+ر+کَ) (اس - مو ، ج - کې) ښاروني - شارکه - مېنا -
**شېرکے** :- (شې+ر+کَے) (ق ، اس - صف مذ) شېرے - وړوکے شېر - عموماً طنزاً استعمالېږي -
**ـــــ شېرکے کېدل**:- ښغ ښغ کېدل - مشروټے مشروټے کېدل - د ځان نه لويې خبرې کول -
**شېر ګل خېل** :- (شې+ر+ګُ+ل+خېل) (اس - مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د يونس خېلو څانګه ده او يونس خېل ، بستي خېل ، ادم خېل ، افريدي دي -
**شېر ګله** :- (شې+ر+ګُ+لَ) (اس - مو) د پښتنو يوه قبيله ده چې د اکاخېلو يوه څانګه ده او اکا خېل د افريدو لويه قبيله ده بيا مدا خېل او سلطان خېل د شمېر ګله څانګې دي -
**شېر ګنے** :- (شې+ر+ګَ+نَے) (اس - مذ ، ج - ني) د مچو ګګ - ډومبکے -
**شېر محمد خېل** :- (شې+ر+مُ+ح+مَ+د+خېل) (اس - مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د مير حسنو څانګه ده او مير حسني ، مچا ، مده خېل ، ابراهيم خېل ، اتمان زئي ، درويش خېل وزير دي -
**شېرن** :- (شې+ر+ن) (پ - صف) ښورن - ګرځېدونکے - ګرځنده -
**شيرن** :- (شي+رِ+ن [صف] (و------ شيرين)
**شيروار** :- (شي+ر+وا+ر) (ق - اس - مذ) په پيو کښې شريکت - چې يو څو کورونه پې شريک کړي او د شربلو (څربولو) نه پس ئې کُوچ او شوملې ئې هم شريکې وي -
**شيروارئي** :- (شي+ر+وا+رَ+ئ+ي) (ق - اس - مو) (۱) د لرګي کاسه يا لويه خمڅې چې د شوملو نه پرې کُوچ ټولوي - (۲) د پې ماسته کولو د پاره لوے خاورين لوښے - دوني -
**شېرواني** :-(شې+ر+وا+نَ+ی) (ق - اس - مو) (۱) د تمبو په شان چت يو قسم چې اول ډکي مکي واچوي او بيا پرې ختهه ليوه کړي - (۲) (ق) د ماشومانو وړه شان قبا - (۳) خاص قسم کوټ چې په هندي کښې هم ورته شېرواني وائي -
**شيره** :- (شي+رَ) (ف - مو - ج - ري) د مېوې - ګن يا داسې قسم نور څيزونو نه په دباؤ يا په نچوړولو سره اوښکلې اوبۀ - رس - ټينګ شربت -
**ـــــ انګور**:- (اَ+ن+ګُو+ر) (ف تر - اس - مو) د انګورانو نه په دباو سره يا نچوړولو سره ښکلې اوبۀ - د انګورانو رس -
**ـــــ بادام**:-(با+دا+م) (ف - تر - اس - مو) د بادامو د ټکولو او چکوولو سره يا په لنګرۍ کښې رګړه کولو نه پس چې کومې ټينګې اوبۀ راووځي د بادامو
**شيره** :- (شي+رَ) (ق - اس - مو ، ج - شيرے) (۱) وړوکے نابالغ هلک - لړاهق -
(۲) د ځناور هغه بچے چې لاد مور پې ځښي- (۳) پې او شوملې (يا ماستۀ) سره ګډ کړي چې "خريړے" هم ورته وائي - (۴) پنجيري - د مختلفو مغزياتو (لکه چارمغز - بادام ، پسته) او چيړ وغېره نه په غوړو کښې جوړه شوې چوري شان چې نوې لنګې ښځې له د طاقت د پاره ورکولے شي -
**شـيـره** :- (شي+رَ) (اس - مـو ، ج - شيـرے) (۱) هغـه حلـوا چـې د مـړي د قبـر کنستونکو د پاره د جنازې نه اول لېږلے شي - (۲) حلوا - لېټي -
**ـــــ خوړل** ، (د چا) :- د چا مرګ کېدل - عموماً د ښېرې په طور وئيلے شي چې د پلار يا د مور شيره وخورې يعني پلار يا مور دې مړه شه -
**شيرے** :- (شي+رے) (ق - اس - مذ ، ج - ي) يو قسم واښۀ دي چې اوږکې (ګندنا) په شان وي خو خوږ وي او خوړے شي -
**شېرے** :- (شې+رَے) (اس - مذ ، ج - ري) د ماشومانو يو مشهور مرض چې په بدن ئې وړې وړې دانې راوخېژي - شرے -
**شېري خېل** :- (شې+ري+خېل) (اس - مع) د پښتنو قبيله ده چې د بغداد خېلو څانګه ده او بغداد خېل ، کيمل خېل ، اُرمز خېل ، سپاه افريدي دي -
**شيرين** :- (شي+ري+ن) (ف - صف - مذ ، مو - ه) (۱) خوږ - (۲) هغه څيز يا بنې ادم چې په سړي ښۀ او خوږ لګي - (۳) د مسلمانانو سړو او د زنانه و نوم کښې استعمالېږي - (۴) د ايران د مشهور روماني قيصې هيروئينه چې د ايران د باچا خسرو ښځه وه او د يو غريب معمار فرهاد معشوقه وه - وائي چې دۀ د شيرينۍ د حاصلوولو د پاره غر کنستے او يوه والۀ ئې ترې د اوبو (يو د پيو) رابهبولے وه خو چې دا دروغ خبر ئې واورېدو چې شيرين مړه شوه نو په خپله تيشه ئې ځان مړ کړو - ورپسې شيرينه هم مړه شوه -
پرويش مګس د شيرين مذاق څۀ
کوه کن د تن شه لکه فرهاد اوسه (سعيد)
(په پښتو کښې د شيرين په ځاے عموماً شيرينه يا شيرينۍ استعمالېږي)-
**ـــــ بيان**:- (بَ+يا+ن) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) هغه کس چې بيان ئې خوږ وي - خوږ ژبے - خوږ ځبے - هغه کس چې په ليک کښې ئې خوږ والے وي او ليک ئې فصاحت او بلاغت لري - د فصيح او بليغ کلام ويونکے يا ليکونکے -
**ـــــ بياني**:- (بَ+يا+ني) (ف - تر - اس - مو) (۱) خوږ ژبتوب - خوږ ځبوالے - (۲) خوږه ژبه کښې ليک کوونه - د فصاحت او بلاغت نه ډکه وېنا کوونه يا ليکنه -
**ـــــ زبان**:- (زَ+با+ن) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) خوږ ژبے ، خوږ ځبے -
شا ، حليم شيرين زبان شه
نېک اخلاقه ، مهربان شه (حافظ)
**ـــــ سخن**:- (سَ+خُ+ن) يا (سُ+خ+ن) (ف تر - صف ، مذ ، مو - ه)خوږې خبرې کوونکے - خوږبيانه - (و---- شيرين بيان) -
**ـــــ کلام**:- (کَ+لا+م) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) (و---- شيرين بيان)
**ـــــ ګفتار**:- (ګُ+ف+تا+ر) (---- شرين بيان)
**ـــــ ګو**:- (ګو) (ف تر - صف) خوږې خبرې کوونکے - خوش ګفتاره -
تلخ ګوی بـه تنګ معـاشه وي حافظه
شيرين ګو به مدام خوري اثمار د ژبې (حافظ)
**ـــــ مقال**:-(مَ+قا+ل) (ف تر - صف) خوږ ژبے - خوږ ځبے - خوږې خبرې يا تقرير کوونکے
تـر وئيل نـۀ رسېږي
درلربا شيرين مقالې (خوشحال)
**ـــــ نوا**:- (نَ+وا) (ف تر - صف) خوږ اواز واله - خوش اوازه -

**شیرین خېل** :- (شي+ري+ن+خېل) (اس-مع) د پښتنو يوه قبيله ده چې د عمر خېلو څانګه ده او عمر خېل ، نانا خېل ، بهول زئي ، محسود دي-

**شیرین خیل** :- (ددغه) (اس-مع) د پښتنو قبيله چې د مندازئي يوه څانګه ده او مندازي ، دولت زئي ، مليزئي بنير وال دي-

**شیرینکه** :- (شي+ري+ن+کَ) (ق-اس-مو ، ج-کې) ځوانکه-ځواني دانه-

**شیرینه** :- (شي+ري+نَ) (د شيرين تانيث دے-(و--- شيرين)

د معشوقې نوم عاشق په جهان خور کا
د شيرينې بــازار تــود دے لــه پرويزه　　(خوشحال)

**شیریني** :- (شي+ري+ني) (اس-مو) (۱) خوږوالے-خوږ ښيزونه-

امــوخته لــكــه طــوطا پــه شــيريني وم
لكه زركه شګې خورم په نيستګارۍ کښې　　(حافظ)

(۲) ميټـــاى-مېـــوه-خـــواږهٔ-خصوصـــاً هغـــه خـــواږهٔ ښيزونـــه چـــې د خوشحالۍ په کومه موقع وېشلے شي-(۳) مجازاً رشوت-بډے-

**ـــــ پـز** :- (پَ+ز) (ف تـر-اس-مـذ ، ج-ان) شـيريني پخـوونكے-متيـايـاني جوړوونكے - حلوائي-

**ـــــ فــروش** :- (ف+رو+ش) (ف تـرم مـذ ، ج-ان مـو-ه) خـواږهٔ خرڅـوونكے-متيايانې خرڅوونكے-حلوائي-

**ـــــ ورکول** :- (۱) خواږهٔ وركول-متياى وركول- (۲) رشوت وركول-

**ـــــ ويشتل** :- خوږهٔ ښيزونه خصوصاً متياى وغېره په حاضرو خلقو تقسيمول لكه ماشوم چې په سبق كښېنولے شي نو د كور والـه طرف نه د مدرسې يا د مكتب په هلكانو او جينكو متياى ويشلے شي-دې تـه شيريني ويشـل وائي-د هر ښـهٔ كـار د شورو كولـو پـه وخت داسـې خوارهٔ ويشـل كېـږي-د كـومې ښـې او د خوشـحالۍ د خبـرې د پښـېدو نـه پـس هـم دا شـيريني ويشلے كېږي-

**شیرینۍ** :- (شي+ري+نَ+ى) د شيرين تانيث دے-(و--- شيرين)

**شیرینۍ** :- (شي+ري+نَ+ى) د "شيريني" اضافي او مجروري شكل دے-

**د ـــــ صنائع** :- (صَ+نا+ئي+ع) (عف-تر-ج) د خوږو قسم قسم جوړونے-قسم قسم متيايانې-

**شېږ** :- (شې+ږ) (ق-صف ، مذ ، مو-ه) چين سترګې-

**شېږا** :- (شې+ږا) (ق-صف-مذ)　كانړے-يو سترګے-

**ـــــ توب** :- (تو+ب) (اس-مذ) يو سترګ والے-كاڼې توب-

**شیش** :- (شي+ش) (اس-مذ) شست-نښانه-نخښه-

**ـــــ اخستل** :- نښانه اخستل-د څهٔ څيز د ويشتو د پاره ټوپک وغېره دغې څيز ته سمول-شست اخستل-

**شیش** :- (شي+ش) (د شيشه مخفف شكل دے-د ځينو الفاظو نه وړاندې د سابقې په طور راځي-او د شيشې معنٰى وركوي-

**ـــــ محل** :- (مَ+حَ+ل) (ف تر-اس-مذ ، ج-ونه) يو قسم عمارت دے چې د كوټو په دېوالونو او په چت ائينې لګولے شي-

**شیشتاوه** :- (شي+ش+تا+وَ) (ق-اس-مو) هغه ځاروے چې ډېر لړ پې كوي-

**شیشت پیشت** :- (شي+ش+ت+پي+ش+ت) (پ تر-صف مذ ، مو-ه-ه) سست پست-ناراست-

**شیشتے** :- (شي+ش+تے) (ق-اس-مذ ، ج ، تي) د څرخ پره-شيشتي هم ورتـه وائي

**شیشر** :- (شي+شَ+ر) (اس-مذ ، ج-ونه) فساد -ضرر-

چېرې نهٔ وي چې ئې وشړې له دره
وربــره د اهــونـــو لـــه شيشره　　(خواجه محمد)

**شیشـر** :- (شي+ش+ړ) (اس-مـذ ، ج-ان) (۱) مشـهور مارغـهٔ دے-شـبخ دو-

(۲) چيچړے -هغه سړے چې په سړي پورې ننبلي-مجازاً بې حيا-

**شیشک** :- (شي+ش+ک) (اس-مذ ، ج-ونه) (۱) برانډه-دالان-شينګړې-(۲) د باچاهانو د درګاه ځاے-ايوان-

**شیشک** :- (شي+ش+ک) (ق ، اس-مذ ، ج-ان) درې كليز ګډورے-

**شیشکه** :- (شي+ش+کَ) (اس-مو ، ج-کېږ) يوه فرضي بلا-ويـروونكے ښيـز چې وجود نهٔ لري-باو-

**شیشکه** :- (شي+ش+کَ) (ق-اس-مـو ، ج-کـې) (۱) نـرۍ لښـتـه-نـري (وچـه) څانګه-چمكه-(۲) د كند وغېره نرۍ كرښې-

**شیشګے** :- (شي+ش+ګے) (اس-مذ ، ج-ګي) شكوڼ-مشهور ځناور-شرګے-

**شیشګے مار** :- (شي+ش+ګے+ما+ر) (اس-مذ ، ج-سيشګي ماران)

د مارانو يو قسم-تور مار-(هندي-ناګ)

**شیشن** :- (شي+ش+ن) (ق-اس-مذ ، ج-ان) نـوے زېږېدلے ګـډورے چې لاپې څښکي-

**شیشـن** :- (ش/شي+ش+ن) (انګ-اس-صـف) (د سيشـن بـدل شـكل دے)-عموماً سيشن جج د عدالت د پاره استعمالېږي-

**ـــــ جج** :- (ج+ج) (انګ-اس-ج-ان) د سيشـن كورټ جج ، چې لـوے اختيـارات لري-

**ـــــ کول** :- د قتل وغېره مقدمه -د لاندې عدالت جج چې د پانسۍ اختيـار نهٔ لري بره د سيشن جج عدالت ته لېږل-

**ـــــ کېدل** :- مقدمه د لاندينۍ عدالت نه بره د شيشن جج عدالت ته تلل ، عموماً د قتل مقدمه چې لاندينۍ ته د پانسي د سزا اختيار نهٔ وي-

**شیشو** :- (شي+ شو) (ق-اس-مذ ، ج-ګان) شيشړ-مشهور مارغهٔ-شبخ دو

**شیشـه** :- (شـي+شَ) (ف-اس-مـو ، ج-شيشـې) (۱) ښيښـه-د خـاص قسـم شګې او د ځنو نورو ښيزونو نـه جوړولے شي هغـه شفافې تختې چې پـه كښـې اورې پـورې ښيزونـه ښكاري-ددې مـادې نـه لوښـي وغېـره هـم جوړولے شي-(۲) ائينه چې پكښې د سړي مخ او نور مخامخ ښيزونه ښكاري دا هم د رڼې شيشې د نرو تختو نه جوړولے شي.

**ـــــ باز** :- (با+ ز ) ( ف تر-صف-مذ ، مو-ه) مكار-حيله ګر-مداري-دوكه باز

**ـــــ بــازي** :- (بـا+زي) (اس-مـو) د چـل دوكـې د كـار نمـائش-مـدري تـوب-مكاري-دوكه بازي-

**ـــــ بازي کول** :- د چل دوكې د كار نمائش كول-مدار توب كول-دوكه فريب كول

**ـــــ کول** :- لكه د شيشې په شان صفا كول-داسې ښكاره كول چې هېڅ شے په كښې پټ پاتې نهٔ شي-ائينه كول-

**ـــــ کېدل** :- د شيشې په شان صفا كېدل-داسې ښكاره كېدل-چې هېڅ ښيز په كښې پټ پاتې نهٔ شي-ائينه كېدل-

**ـــــ ګر** :- (ګ+ر) (ف تر-اس-مذ ، ج-ان) شيشې جوړوونكے-شيشه باز-

**شیشۍ** :- (شي+شَ+ى) (اس-مو) (۱) هغه لرګے چې په سر ئې اور بـل شـوے وي او انګـار تـرې جـوړ شـوے وي-ماشومان دا لرګے يـا ډكے واخلي او تاووهي ئې نو سره دائره شان ترې جوړېږي-(۲) لرګے وغېره چې په سر ئې اور بلېږي او د رڼا د پاره پكارولے شي-لكه تا هغه پسې ولې شيشۍ لګولې ده

**شیشي** :- (شي+شي) (اس-مو) د شيشې نه جوړ يو وړوكے بوتل-

**شیشـي** :- (شي+شي) (اس-مـذ ، ج ي) مشـهور بـوټے چې اور لګولـو د پـاره استعمالېږي-سيسې-

**شېطان** :- (شې+طا+ن) (اس-مذ ، ج-ان ، ع :شياطين) (۱) يو مخلوق چې د اوره پېدا شوے دے او كار ئې دا دے چې انسان (بني ادم) په انګ انګ

چلونو د سمې لارې نه بدې او غلطې لارې ته اړوي - بد کارونه ورته ښـهٔ او ښـکلي ښکاره کـوي - پـه زړونـو کښـې شکونه او وسوسې پیدا کـوي - ابلیس یا د ابلیس ملګرے -(۲) وران کارے - شرارت کوونکے - فسادي

**ـــــ په خوب کښې راتلل**:- د ځوان سړي په خوب کښـې اختلام کېدل - اودس پرې اوړېدل -

**ـــــ ته توکل**:- په شیطان توکل - د غصې یا د څهٔ بدې خبرې په موقع وئیلے شي چې شیطان تـه توکـه یعنې د شیطان مـه منه - شیطان دې لګیـا دے تر ښاسې - ورته توکه -

**ـــــ چکے**:- (چ+کے) (عپ تر - صف) شیطان صفت - شیطانوکے -

**ـــــ خوټے**:- (خُ+ټے) (صف) مکار - حیله باز -

**ـــــ سیرت**:- (سي+رَ+ت) (عف تر - صف مذ ، مو - ه) هغه کس چې خوي خصلتونه ئې د شیطان په شان وي - بدسیرته - بد کرداره سړے - فساد پیدا کوونکے - مفسد - وران کارے -

**ـــــ شړونے**:- شیطان لرې کوونکے - د شیطان خبره نهٔ منوونکے -

د زړهٔ په کور کښې ځاے د رحمان وکړه
د زړهٔ لــــه لـوره شیطان شـړونے شه (خوشحال)

**ـــــ صفت**:- (ص/صي+فَ+ت) (وـــــ شیطان سیرت)

**ـــــ ماب**:- طنزاً د وران کارې او شیطانۍ کوونکے د لقب په طور استعمالوولے شي -

**ـــــ مجسم**:- (مُ+ج+س+سَ+م) (عف تر - اس - مذ) هغه کس چې پوره وجود ئې د شیطان وي - پوره شیطان مجازاً ډېر وران کارے ډېر لوے فسادي -

**د ـــــ پر لکۍ سپر بدل**:- د اوښ په لکۍ سوربدل - بې شرمي او بې حیايۍ کول -

**د ـــــ تېر باسل**:- (وـــــ د شیطان غلوول)

**د ـــــ خرښـه**:- (ت)سَ+ر+خَ/شَ) (۱) کنایـه - وران کـارے هلـک - شـرارتونه کوونکے - شرارتي - (۲) (پخوا) بائي سبکل -

**د ـــــ خطا ویستل**:-

**د ـــــ ښوېول**:- (وـــــ د شیطان غولوول)

**د ـــــ غلوول**:- (۱) د شیطان تېر باسل - د شیطان چالـه دوکه ورکـول - لکه شیطان وغلوولم (او دا غلط کـار رانـه وشـو) -(۲) اختلام کېدل - اودس اوړېدل -

**د ـــــ غوږونه دې کاڼه دي**:- یوه جمله ده - په هغه موقع وئیلے شي چې څوک څهٔ ښهٔ خبره بل ته کوي یعنې شیطان دې نهٔ واوري چې ورانے په کښې پیدا نهٔ کړي

**د ـــــ کلمه**:- (کُ+ل+مَ) ډېر اوږد بیان یا قیصې -

**د ـــــ لکې**:- (لَ+کَ+ۍ) کنایتهً وران کارے - شرارتي -

**د ـــــ لکۍ ټنګول**:- یعنې ټول شیطان خو د لاسه وتے دے صرف لکۍ ئې پاتې ده او همدغه لکۍ ئې ټینګه نیولې ده ، کنایه - خا مخا په غلطه خبره ټینګېدل - په غلطه خبره اړ کېدل -

**سړے د سړي ـــــ دے**:- دا بني ادم دے چې بل بني ادم تېر باسي او بـدو تـه ئې لمسوي او په غلطو یا بدو ئې سر کوي - مقوله ده سړے د سړي رحمان دے او سړے د سړي شیطان دے -

**شیطانت** :- (شي+طا+نَ+ت) (فپ تر - اس - مذ) شیطاني - وران کارې - شرارتي - فساد کاري - ورانے اچونه - (په څهٔ کار یا معامله کښې) -

مل په شیطانت کښې د ابلیس د کوم پیدا شو
اوس بـه پـه هامان پسې ارمان د لعین نهٔ شي (حافظ)

**شیطانوکے** :- (شےَ+طا+نُو+کے) (عـپ تـر - صـف) شیطان صـفت - د شـیطان پـه شان کارونه کوونکے - شیطان چکے -

**شیطاني** :- (شي+طا+ني) (عـف - اس - مـو) شیطان سره تعلق لـرونکے - شـیطان سره منسوب - (کار یا څیز)

**ـــــ حرکت**:- (حَ+رَ+کَ+ت) (۱) یـو کـار چې محرک ئې شیطان وي - د شیطان په خطا کولو یو شوے کار -(۲) شرارت - وران کاري -

**ـــــ خوب**:- (خو+ب) (۱) هغه کس چې په کښـې د ځوان سړي اختلام وشي -(۲) هغه خو چې په کښې څهٔ غلط کار یا غلط څیز وغیره ولیدے شي -

**ـــــ وسوسه**:- (وَ+س+وَ+سَ) (عف تر - اس - مو ، ج - سې) هغه وسوسه یا وهم چې شیطان په زړهٔ کښې پیدا کړي - د شیطان پیدا کړې شک شبه -

**شیطانۍ** :- (شي+طا+نَ+ۍ) (۱) د شیطانۍ اضافي او مجروري شکل (۲) د شیطاني جمع -

**د ـــــ سر**:- (سَر) (وـــــ د شیطانۍ کُونه) د کونه په ځاے اخلاقاً "د سر" لفظ استعمالوولے شي -

**د ـــــ ګونه**: (کُ+نَ) د شیطان لکۍ - شرارتي ، وران کـارے - هر وخت وران کارونه کولو واله -

**شیطانے** :- (شي+طا+نَے) (عپ تر - اس - مذ) د شیطانۍ کار - وران کاري - شرارت مفسدي -

**ـــــ کول**:- وران کاري کول - شرارت کول - په څهٔ کار کښې فساد پیدا کول - په څهٔ کار کښې ورانے اچول -

**شیطنت** :- (شے+طَ+نَ+ت) (اس - مذ ، ج - ونه)

که هر څو ئې په رضا او په صلاح وې
ویره بـوـیـه د رقیب لـه شیطانته (حمید)

**شیعه** :- (شي+عَ) (ع - اس - مذ ، ج - ګان) د مسلمانانو یوه لویه فرقه چې د حضرت علي کرم الله وجهه د خلافت د حق طرفدار وو - دا فرقه په مصر کښې پیدا شوې وه خو وروسته ئې په ایران کښې ډېر زور ومونـد - د حضور صلعم نه پس د حضرت علي کرم الله وجهه، حضرت فاطمه الزهرا رضي الله عنها او د دوي زامن حضرت امام حسن او حضرت امام حسین رضي الله عنه ډېر مني - د دوي ډېرې ډلې دي -

**ـــــ توب**:- (تو+ب) (اس) شیعه والے - د شیعه کېدو حالت -

**ـــــ والے**:- (وا+لَے) (وـــــ شیعه توب)

**شیفتګي** :- (شي+ف+تَ+ګي) (ف - مو) عشق - عاشقي - مئینتوب - مینتیا -

**شیفته** :- (شي+ف+تَ) (ف - صف) مئین - عاشق - زړهٔ بائیللے -

**شیک** :- (شي+ک) (انګ - اس - مذ) خوځونه - حرکت ورکوونه -

**ـــــ هېنډل کول**:- (انګ) په جوړ تازه کښې لاسونه ملاوول - مصافحه کول -

**ـــــ ملک**:- (مِ+ل+ک) د پیو (شودو) خوځوونه - د یو مشین په ذریعه د پیو شاربل (ځړوول) او د هغې نه جوړ شوے د پیو ځګدار غوندې شربت

**شیکاګو** :- (شِ+کا+ګو) (اس - مع) په امریکه (ریاستهائے متحده) کښې یو ډېر لوے ښار

**شیکره** :- (شي+ک+رَ) (اس - مؤ) (وـــــ شیکرے)

**شیکرے** :- (شي+ک+رَے) (اس - مذ) د نرباښې یو قسم دے - ښکاري مارغهٔ دے -

د زړهٔ ښــــکار مې په نوکو شوکو پوکه یووړ
نشته ترس د شوخو ستر ګو په شیکره کښې (حسین)

**شیکسپیئر** :- (شے+ک+س+پي+يَ+ر) (اس - مع) د انګریزۍ ژبې عظیم ډرامه نګـار (۱۵۲۴ ء ۱۲۱۲ ء) د ژونـد حـالات ئې صـحیح معلـوم نـهٔ دي - د خپلو ډرامو له کبله په درسته دنیا کښې شهرت لري - د دهٔ یو څو ډرامې په پښتو کښې هم ترجمه شوې دي -

**شیکون** :- (شي+کو+ن) (اس - مع) د پښتنو یو قبیله ده چې د اوریازیو څانګه ده او اوریازي ، غنجي زرکون دي -

**شیکے**:- (شي+کے) (ق ، اس-مذ ، ج-شیکي) یو زهرناک بوټی دے چې څاروے ئې وخوري نو مړ شي-

**شیګره**:- (شي+ګ+ړ) (ق ، اس-مو ، ج-ړي) تېز باران-د باران شېبه.

**شیګړه**:- (شي+ګ+ړ) (ق-اس-مو ، ج-ړے) (۱) حامله ښځه-امید واره ښځه-(۲) شګاړه-متېزه ښځه-

**شېل**:- (ش+ل) (انګ-اس-مذ ، ج-ونه) د توپې وغېره لویه ګوله-

**شېلاوه**:- (شي+لا+و) (ق-اس-مو ، ج وے) د اوبهٔ خوریوه طریقه چې ټوله زمکه یو شان پرې اوبهٔ کېږي-

**شیلتک**:- (شي+ل+ت+ک) (اس-صف ، مذ ، مو-ه) تړ تړے-تتړے-

**شیلډ**:- (شي+ل+ډ) (اګن-اس-مذ ، ج-ونه) ډال-سپر-د تانبې شپینو زرو وغېره نه د ډال په رنګ جوړ شوے هغه څیز چې په لوبو کښې ګټلو والہ ټیم له ورکولے شي-

**ـــ وړل یا ګټل**:- لوبه کښې بریالے کېدلو نه پس انعامي "ډال" اخیستل-

**شیلف**:- (ش+ل+ف) (انګ-اس-مذ ، ج-ونه) هغه الماری چې ورونه نه لري او کتابونه وغېره په کښې کښېښودے شي-

**شېله**:- (شي+لَ) (انګ-مو ، ج-شېلے) د خوړ یا د سیند د تېرېدو لاز-هغه کنده وغېره چې سېلاب پرې تېرېږي-د سېلاب جوړه کړې لاره-لکه په هره شېله ئې جیپ تلے شي-

**ژوره ـــ**:-ج(ژَ+ؤ+ر)هغه جوره (ژوره) پلنه کنده چې د سېلاب اوبهٔ په کښې تېرېږي-

**شېله**:- (شي+لَ) (اس-مو ، ج-شیلے) د کار نه ډډه کوونه-په کار کښې سستي یا چل ول-د سیند نرۍ اوبه چې بنده پرې پورې وتے شي-

**ـــ اخستل**:- تجاهل کول-د کار نه ډډه کول-

**ـــ کول**:- خپل ځان د څهٔ څیز نه داسې بچ کول چې څوک پرې خبر نهٔ شي-تجاهل کول-د کار نه ځان په دوکه بچ کول-

**شیله**:- (شِي+لَ) (اس-مع) ضلع چمن ته نزدې یوه علاقه شیله باغ د یو ځاے نوم

**شېله پینګ**:- (شي+لَ+پي+ن+ګَ) (اق-صف ، مذ ، مو-ه) د کار نه اړخ کوونکے د کار غل-

**ـــ کول**:- د کار نه ډډه کول-د کار نه ځان پټوول-د کار نه غل کېدل-

**ـــ کېدل**:- د کار غل کېدل-د کار نه ځان پټوول-د کار نه ډډه کول-

**شیلے**:- (شي+لَے) (ق-اس ، مذ) (۱) یو رنګ چې د تور او شین رنګونو د ګډون نه جوړولے شي-(۲) هغه ټوکي ته هم وائي کوم چې دغه رنګ لري-

**شېم**:- (شي+م) (انګ-اس-مذ) شرم-عار-خجالت-

**شِیَمَ**:- (شِ+يَ+م) (ع-اس-ج) د شمیت جمع ده-عادتونه-خصلتونه-خویونه-

که لویې غوړې نیت لویې کړه
غیّور مـــه شسه ، بـــد شیم (حافظ)

**شیماني یا سیماني**:- (شي/سي+ما+ني) (اس-مع) د پښتنو د یوې قبیلې نوم دے چې د مورانیو څانګه ده-جعفر دي-

**شیمپو**:- (شي+م+پو) (انګ-اس) یو خاص قسم مائع صابن-د سر د وېښتو وینځنه-خصوصاً خاص قسم مائع مرکب سره-شامپو-

**ـــ کول**:-د سر وېښتهٔ وینځل-د سره وېښتهٔ په خاص قسم مائع مرکب سره وینځل شامپو-

**شیمت**:- (شي+م+ت) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) عادت-خوي-فطرت-

**شیمست**:- (ش+م+س+ت) (فر-اس-مذ ، ج-ان ، مو-ه) کېمسټ-د کېمیا د علم ماهر-د طبعیاتو د علم پوهان-عـم طور سره هغه دوا فروش ته وئیلې شي څوک چې کیمیاوي داروګان خرڅوي-

**شیمیائي**:-(ش+مي+یا+ئ+ي) (ف-اس-مو) هغه کار یا څیز چې کیمیا سره تعلق لري کیمیائي-طبیعیاتي-

**شین**:- (شي+ن) (اس-مذ ، ج-ونه) په الف با کښې د یو توري نوم دے-(و--- "ش")

**شین**:- (شي+ن) (اس-صف-مذ ، مو-ه) (۱) د مشهور رنګ نوم د ونو د پاڼو په شان وي-(۲) ځینې وخت اسماني (نیلي) رنګ ته هم وائي-لکه شین اسمان (خو عموماً د شین نه هم دغه برنے رنګ مراد اخستے شي او پکار هم دي)-

**ـــ اچول**:- ډېر زیات وهل ټکول-لکه زامن ئې په وهلو تک شنهٔ واچول-

**ـــ اسمان**:- (ا+س+ما+ن) (اس-مذ) (۱) نیلي رنګے اسمان-ابي رنګے اسمان-(۲) بې وریځو اسمان-

**ـــ امي**:- (اُ+مي) (صف) ببخي امي-بالکل بې سواده-بالکل ناخوانده-بالکل-

**ـــ پاڼې**:- (پا+ن+ړي) (ق-اس-مذ ، ج-ي) د نیلوفر ګل-

**ـــ پوزې**:- (پو+زي) (ق:اس-مذ ، ج-زي) د ټوپک یو قسم-

**ـــ پوش**:- (پو+ش) (۱) هغه کس چې شنې جامې ئې اغوستې وي-(د پرهیز ګاری جامه)-(۲) ونې بوټي-

**ـــ تتی**:- (تَ+ت+ی) (و---- شین تتر)

**ـــ تتر**:- (ت+تر) (ق-اس-مذ ، ج-تي) شمشتی-

**ـــ تندر**:-(تَ+ن+د+ر) (اس-مذ) (۱) ډېر سخت تندر (۲) کنایتاً د کار ډېر مړنے-

**ـــ توب**:- (تو+ب) (و---- شین والے)

**ـــ توپی**:- (تو+پَ+ی) (ق ، اس-مو) د یوې مرغۍ نوم دے چې برګه وي اوږده لکۍ لري-اکثر د اوبو په غاړه ناسته وي او لکۍ خوځوي-چکۍ-شدوپۍ-

**ـــ توتي**:- (تو+تي) (و---- شین طوطي)

**ـــ تیاغ**:- (تیا+غ) (اس-مذ ، ج-ان) (۱) مشهور مارغهٔ دے شین تېغ-(۲) (ق) ماهي خورک-هغه مارغهٔ مهان یا کبان خوري-

**ـــ تېغ**:- (تې+غ) (و---- شین تیاغ)

**ـــ تېرے**:- (تې+رے) (ق-اس-مذ ، ج-ي) د بلبلو یو قسم-(په فارسۍ کښې ورته بلبل سنګ شکن وائي)-

**ـــ ټوپکه**:- (ټو+پ+کَ) (و---- شین توپی)

**ـــ توپی**:- (تو+پَ+ی) (و----- شین توپی)

**ـــ جاوے**:- (جا+وَے) (اس مذ ، ج-ي) هغه بوټي چې مړاوې شوے وي-خو لاوچ شوے نهٔ وي-

**ـــ جکی**:- (و----- شین ځکی)

**ـــ ځکی**:-(و---شین ځکی) (پ تر-اس-مو) سیجکی-غنمه تنکی-د مبل-شنځه-

**ـــ چاے**:-(چا+ے) (و---- شنه چاے)

**ـــ چغزي**:- (چَ+غ+زَ+ئ) (ق ، اس-مو) پسته-مشهور مېوه-

**ـــ چمیے**:- (چَ+م+یے) (ق ، اس-مذ ، ج-بي) انګریز-جامو ټوکو ته رنګ ورکونکے-

**ـــ خالو/خالیو**:- (۱) د شین خالی جمع-(۲) د شین خالی اضافي یا مجروري شکل

**ـــ خالی**:-د شنو خالونو مېرمن-په پښتو سندرو کښې خصوصاً په کاکړی، قندهاری غاړو او لنډیو کښې د معشوقې د پاره ډېر راوړے شي-بلکې دې غاړو ته د شین خالو غاړې وئیلے شي-په دې کښې اکثر پېغله خپل محبوب مخاطب کوي-

اندېښنې دي کـــه خوارۍ
مخ د کړجن دے شین خالۍ (غاړه)

**ـــ خوتې**:- (خُ+تې) (اس-مذ ، ج-تي) شین تېغ-مشهور مارغهٔ-

**ـــ خورکه**:- (خ+و+ر+کَ) (س-مو ، ج-کے)د چرمبنکۍ (چمچورۍ) یو غرئیز

قسم چې نیلي رنګ لري - ابي رنګه څرمنبکي -

**دکه**:- (دَ+کَ) (ق ، اس ، مو ، ج -دکې) وړوکے کانړے چې ماشومان ئې په ګوته ولي

**دے**:-(۱) اسمان شین دے -وریځ نشته -لکه نن خو شین دے -(۲) تیار - اماده -

نس مې افرید ے دے څۀ غم نۀ لري د دین
بنۀ فکر ئې لړ دے ډېر دے بدو ته شین (خوشحال)

**ډنډ**:- (ډَ+ن+ډ) (ق -اس -مذ ، ج -ونه) شنه وادي -هغه وادي چې شنکي او سرسبزه وي -

**ډولے**:- (ډَو+لے) (ق -اس -مذ ، ج -لي) مراوې شوے -نیم وچ پتے -

**دولے کېدل**:- د پتیي د فصل مراوي کېدل -(چې لاپوره وچ نۀ وي -

**زړۀ**:- (ز+ړ) وهلے ټکېدلے زړۀ -مجازاً غم جن غمونو وهلے -

دا زمـــا لــه غمه شین زړۀ پکښې خیال د یار د شونډو
هسې رنګ زیب و زینت کا لکه مې په شنه پیاله کښې (حمید)

**زمـرے**:- (زَ+مَ+رے) (اس -مـذ ، ج -ي) (۱) کنایتـاً ډېـر بهـادر او زړۀ ور سړے -(۲) کنایتهً: د کار مړنے -

شین زمرے که چاته په زور زیر شي پائے د مور شي
مرګ تـه ئې زور ورک خوراک د کرمو د وینو دے (حافظ)

**ږیرے**:- (ږي/ژي+رے) (صف مذ ، ج -ي) هغه سړے چې په ږیره کښې ئې سپین او تور وېښتۀ ګډوډ وي -کچرے ږیرے -

**سترګے**:- (س+ت+ر+ګے) (اس -مـذ ، ج -ګي) (۱) د شنو سترګو خاوند - مجازاً شوخ چشم -(۲) فیرنګے -یورپین -

**سرے**:- (سَ+رے) (ق ، اس -مـذ ، ج -ي) (۱) د یـوې مرغۍ نـوم دے -چې نور ټول وجود ئې زېړ وي خو سر ئې شین (نیله) وي-(۲) د مرغابو یو قسم -سونا -شین سرے هیلۍ-

**سورخے**:- (سُو+ر+خے) (ق -اس -مذ) (۱) یو رنګ دے چې د ابي او د سور رنګ د ګډون نه جوړ کړے شي -(۲) د اسونو یو قسم -خنګ -

**شرق**:- (ش+رَ+ق) (پ تر -اس -مذ) شین تندر -ډېر سخت او تېز تندر -ډېر بدګذار -حق دې حق دے نا حق دې شین شرق دے -(متل) -

**شوبے**:- (شو+بے) (ق ، اس -مـذ ، ج -بي) (۱) پودینه -وېلنے -شنشوبے -(۲) یو وړوکے شین رنګے ګل دے -په اوړي کښې کېږي او خوشبویه دے -

**شینکے**:- (شي+ن+کے) شنه ګیاه وغېره چې په زمکه زرغونه شوې وي -(او زمکه ئې شنه کړې وي) -

**طوطا**:- (طو+طا) (و--- شین طوطي)

**طوطي**:- (طو+طي) (فپ تر -اس مذ ، ج -ان) د شــــین رنـــګ طـــوطي - (طوطیـان عمومـاً شـنۀ وي -خـو د "شـین" لفـظ ورسـره تاکیـد د پـاره استعمالېږي -(د طوطیانو نور رنګونه او قسمونه هم شه) -

مهري خـو نه مېوه دارو و چنبډۀ پرې طوطیان
د شنو طوطیانو په چن ښاخ شنبډۀ ولے نۀ شي (حافظ)

**غاړے**:- (غا+ړے) (اس -مذ ، ج -ي) (۱) د یو خړانګي مارغۀ نوم دے - (ق) (۲) د اوبو د یو مارغۀ نوم -(ق)(۳) د مرغابو یو قسم دے -

**غاړے**:- (غا+ړَے) (اس -مذ ، ج -ړي) د مرزانو یو قسم چې د جنګ ډېر مړنے وي -دا مې د جال برخه او دا خو مې شین غاړے دے -(متل)

**غټ**:- (غَ+ټ) (اس -مذ) هغه دانې چې نیمې پخې شوې وي -نیم پخته حبوبات -

**غټه**:- (غَ+ټَ) (ق ،ا س -مو ، ج ، غټې) مسواکۍ ګوته -د شهادت ګوته -

**غر**:- (غَ+ر) (اس، مذ مع) د ژوب په علاقه کښې یو مشهور غر دے -چې درې اړخونو ته ئې شیراني قبیلې ابادې دي -

**غـزے**:- (غ+زے) (ق -اس -مذ ، ج -غزي) د غز د ونې یو قسم چې ډېر لوړ وي -عموماً پـه مېرو او شګلوړو زمکو کښې کېږي او کـالو سرشـن وي -

**غندل**:- (غَ+ن+د+ل) (صف ، مذ ، مو -ه) د بـوټـي نـوې ټوکېـدلې نازکـه ډنډۍ -شین ډانډے -

په سور اور کښې شین غندل ختلے نۀ دے
پـه خـزان کښې چـا بهـار لیدلے نۀ دے (حافظ)

**غـوړے**:- (غـو+ړے) (پ تـر -اس ، مـذ ، ج -ړي) د یـو مارغـۀ دے -تـک توکینے -رنجو مکے -سلېماني مارغۀ -

**غولانځے**:- (غُ+لا+ن+(د)زے) (ق -اس -مـذ ، ج -ځي) د ګـډو بـزو د یـو مـرض نوم دے -چې تیونه ئې درد کوي-

**کاړ**:- (کا+ړ) (اس -صف ، مذ ، مو -ه) هغه زمکه چې اوبۀ او حاصل نۀ لري - شاړه -

**کاملے**:- (کا+م+لے) (ق -اس -مذ ، ج -لي) یو شین بخن شان کانړے دے چې غورۍ وغېره ترې جوړولے شي -لیشم -

**کځ**:- (کَ+(ت)س) (ق -اس -مذ) د کاني یو قسم دے چې رګونه لري او مړ دکي ترې جوړولے شي -

**کلۍ**:- (کَ+لَ+ۍ) (اس -مو) شنه لښته -چمکه -

**کوځے**:- (کو+(ت)سے) (اس -مـذ ، ج -ځي) یـو قسم شنه مرۍ ده چې د بـد نظر نه د بچ کولو د پاره د ماشومانو په غاړه کښې اچولے شي-

**کوړم**:- (ک+وُ+ړ+م) (ق -اس -مذ) سر سبزه او شین سینکۍ وادي - شین ډنډ-

**کوڼے**:- (کو+ژَے) (ق -ا س -مذ ، ج -ژي) یو قسم مرغۍ ده -

**کشتي**:- سبزه زاري -شین شینکے -

**کوسے**:- (کو+سے) (ق -اس -مـذ ، ج -سي) د یـو مارغـۀ نـوم دے چې شین رنګ لري او د طوطي په شان وي -سبزک -

رنګ د طوطیانو لري شین کوسي
هنر چې نـه لـري بې قدره اوسي (خوشحال)

**کول**:- شین رنګ ور کول -

**کول ، په وهلو**:- دومره وهل چې په بدل ئې شنې کربنې جوړې شي - یا د دغه ځاے رنګ شین شي -مجازاً ډېر زیات وهـل -پـه وهلو پـه چا تغمې ودرول -

**کومکه**:- (کُو+مَ+کَ) (اق -اس -مؤ) صحرای کوتره -ډاګي کوتره -

**کومه**:- (کُو+مَ) (اق ، اس -مؤ) (و------- شین کومه)

**کېدل**:-د بوټي پیدا کېدل یا د وچېدو نه پس بیا په کښې تیغ وغېره راټوکېدل - سوال کــه د حافظ چېرې د خداے په درقبلېږي

اور وهلے چوب د شي د کوم چې بیا شین نۀ شي (حافظ)

**کېدل**:-د وریځو خورېدل او شین اسمان (یا ستوري) راښکاره کېدل -

**کېدل ، د خندانه**:- ډېر زیات خندل -بې واره بې واره خندل -ډېره زیاته خندا کول -لکه د خندا نه ورته شین شو -

**کېدل ، د قهره**:- کنایه ، چاته ډېر زیات په قهر کېدل -

**کېدل ، زړۀ**:-د چا عمـل یـا سلوک پـه وجـه زړۀ سترے کېـدل -ډېـر زیـات تنګېدل -د چا په پوهولو زړۀ سترے کېدل -زړۀ پخېدل -

**ګټې**:- (ګَ+ټې) (ق -اس -مذ ، ج -ګټي) د زرد الو په شـان یـوه سخته او کچه مېوه چې یو طرف ئې زېړ او باقي شین وي -

**مغزے**:- (م+غ+زے) (و------ شین منځے)

**منځے**:- (مَ+ن+(د)+زے) (اس -مذ ، ج -ځي) هغه خربوزه چې دننه نه مغز ئې

شین وي ـ

**ـــــ والے** :ـ (وا+لے) (اس ـ مذ) (۱) شین رنګ لرنه ـ (۲) د بوټي شین او تر و تازه "بودل" ـ

**ـــــ وبره** :ـ (وَ+ب+رَ) (ق ، اس ـ مو ، ج ـ ے) نیلي رنګ والا ـ شین رنګے ـ

**ـــــ ورګے** :ـ (وَ+ر+ګے) (اس ـ مذ ، ج ـ ګي) (۱) هغه ځناور چې څرمن ئې نیله وي ـ (۲) نیله رنګے ـ

**ـــــ ؤلے** :ـ (ؤ+لے) (اس ـ مذ ، ج ـ لي) د نیله رنګ چنار ـ

**اسمان ـــــ دے** :ـ (۱) په اسمان کښې وریځ نه شه ـ (۲) کنایه چې ویره خطره نۀ شته ـ میدان صفا دے ـ څوک لیدلو کتلو واله نۀ شته ـ

**د ـــــ خالو غاړے** :ـ د پښتو د عوام شاعرئ د مشهور صنف "غاړه" هغه قسم چې په کښې "شین خالي" پېغلې ستائلے شوې وي ـ یا شین خالو پېغلو جونو سره تعلق لري ـ

**د ـــــ خالو نعرې (نارې)** :ـ د عوامي شاعرئ یو خاص صنف دے چې عموماً غاړې نومېږي ـ ځنه خلق ورته لنډئ هم وائي خو د قندهار د خواؤ شا خلق ورته د شین خالو نعرې (نارې) وائي ـ ددې وجه غالباً دا ده چې په دې کښې د معشوقو د شنو خالونو بیان ډېر وي ـ

**رنګ ـــــ تښتېدل یا تلل** :ـ ډېر زیات ویرې اخستل ـ ویره او خوف طاري کېدل ـ لکه قاتل چې تانېدار ولیدۀ ـ نو رنګ ئې شین وتښتېدۀ ـ

**زړۀ ـــــ کول (د چا)** :ـ (۱) ډېر زیات تنګول ـ (۲) په نصیحتونو سترے کول ـ

**سدم ته ـــــ دے** :ـ (۱) د یوسفزیو په ځینو علاقو کښې دا خیال وۀ چې کومې وریځې د سدم د طرفه (یعني د قبلې د ډډې راشي نو هغه ضرور باران وروي خو چې د سدم طرف ته وریځې نۀ وي ـ نو د باران طمع نۀ شي کېدے ـ مجازاً د څۀ څیز د نیستیا د اظهار دپاره وئیلے شي یا دا چې ددې کار د اکېدولو څۀ توقع ، امید نۀ شته ـ (۲) د کم عقل یا نیستګار سړي په حقله هم (حقارتاً یا طنزاً) وئیلے شي ـ

**قبلې ته ـــــ دے** :ـ په ځینو علاقو کښې پخوا دا خیال وۀ چې کومې وریځې د قبلې د ډډې نه راشي نو هغه ضرور باران ووري ـ ځکه نو چې د قبلې طرف ته وریځې نۀ وي نو د باران طمع نۀ شي کېدے ـ مجازاً امید یا توقع نه شته ـ سدم ته شین دے ـ د څۀ څیز د نیشتیا د اظهار دپاره وئیلے شي ـ

**شین** :ـ (شي+ن) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) د باد رنګ یو قسم دے ـ

**شین** :ـ (شي+ن) (اس ـ مذ) شین رنګے خال ـ

د خلقو لړمون شیند که پوهېږې ستا له شینه (خوشحال)

**شېن** :ـ (شَے+ن) (اس ـ مذ) ادا ـ ناز نخره ـ مکیځ ـ مکېز ـ

اندرون دهر چا شین د عشق په شېن دے
دا یـــو اور دے لګېــدلے لــور پـه لــور (خوشحال)

**ـــــ شېن** :ـ (شې+ن) (صف) په ناز او ادا ـ په نخرو نخرو ـ په فخر و غرور ـ

لـکـه عېن د خپل پـلار خوني وژلے
پسو سړي سترګي راځي په شېن شېن (خوشحال)

**په ـــــ شین درومل** :ـ په ناز نخره تلل ـ په مکېز مکېزل قدم ږدل ـ

تۀ خو با د شقائق په زړۀ کښې داغ ږدې
چې پــه شین شین درومې و چمــن تـــه (خوشحال)

**شین خور** :ـ (شي+ن+خو+ر) (اس مع) د پښتنو یوه قبیله ده چې د خوئېداد زیو څانګه ده او خوئېداد زئي ، شادي زئي ، علي زئي ، سنځر خېل کاکړ دي ـ

**شین خېل** :ـ (شي+ن+خېل) (اس مع) د پښتنو یوه لویه قبیله ده چې د احمد زیو ښاخ دے او درویش خېل وزیر دي ـ (عمر زئي او سرکي) ـ

**شیندک** :ـ (شي+ن+دَ+ک) (اس ـ مذ) یو قسم ګیاه ده چې وېخ ئې د جلابو دپاره پکارولے شي ـ لیوني ـ برړه ـ

**شیندل** :ـ (شي+ن+دَ+ل) (اس ـ جم) هغه لوندې سوټي چې د ځاروو د پښو د لاندې پرتې وي ـ

**شیندل** :ـ (شي+ن+د+ل) (مص مت) (۱) نوستل ـ لوستل ـ د یخوا اخوا غورځول ـ (۲) قربانول ـ ځارول ـ

کــه امان مومې د ګور له سختو
د دنیا عېش پرې د شیندلو دے (سعید)

**ــــ سترګو ته خاورې** :ـ د چا په سترګو کښې خاورې اچول ـ دوکه ورکول ـ تېرېستل

**شیندلے** :ـ (شي+ن+د+لے) (اس ـ مف ـ ج ـ لي) (۱) نوستلے ـ دېخوا اخوا غورځولے ـ (۲) ځار کړے ـ فدا کړے ـ قربان کړے ـ

**شیندنه** :ـ (شي+ن+د+نَ) (حمص) (۱) نوستنه ـ دېخوا اخوا غورځونه ـ (۲) ځارونه قربانونه

**شېډُونکے** :ـ (شي+ن+دُو+ن+کے) (اس ـ فا ـ ج ـ کي) (۱) نوستونکے ـ دېخوا اخوا غورځوونکے ـ (۲) ځاروونکے ـ قربانوونکے ـ

**شیندونے** :ـ (شي+ن+دُو+نے) (فاع ـ مذ ، ج ـ نې) شیدُونکے ـ نوستونکے ـ مجازاً ډېر خرڅ کوونکے ـ مُسرف ـ

**شینده** :ـ (شي+ن+دَ(ه)) (حمص) د شیندلو کار ـ نوستنه ـ

**شیندے** :ـ (شي+ن+دَے) (اس ـ مذ ، ج ـ ي) (۱) یوه غرئیزه ګیاه ده چې زېړ ګلونه کوي ـ (۲) د غلو وغېره تخم ـ

**شیندئ** :ـ (شي+ن+ډَ+ئ) (ق ، اس ـ مو) تکلیف ـ زحمت ـ کړاک ـ

**شینکئ** :ـ (شي+ن+کَ+ئ) (ق ، اس ـ مو) (۱) خاورینه کاسه ـ (۲) د ځنو پښتنو جونو او ښځو نوم ـ

**شینکے** :ـ (شي+ن+کے) (اس ـ مذ ، ج ـ کي) سبزي ـ شنۀ وابنۀ ګیاه وغېره چې زمکه پرې شنه شوې وي ـ

**شینکے** :ـ (ش+ن+کے) (ق ، اس ـ مذ ، ج ـ کي) (۱) کچه او نازکه خربوزه ـ (۲) یو خاص قسم نر کانړے دے چې اوړۀ کړے شي او هغې خاورې سره یو ځاے کړے شي چې تبې ترې جوړولے شي ـ (۳) کاشي کاسه ـ (۴) شین پوش ـ

او که کسب باندې نۀ شي ، سجدو نیسي شینکے شي
د محلت ټوکره چت پټ کاندې خوراک ئې بیلنکے شي (عبدالقادر)

**ــــ ماهي** :ـ (ما+هي) (ق ـ اس ـ مذ) یو قسم مهے (کب) دے چې شین رنګے او ښکلے وي او غوښه ئې ډېره خوندوره وي ـ

**شینګرئ** :ـ (شي+ن+ګ+رَ+ئ) (اس ـ مو) د مربع شکل برج ـ شنګرئ ـ ټارئ ـ

**شینګړو پینګړو** :ـ (شي+ن+ګ+ړو+پې+ن+ړو) [ص] سست پست ـ ناراسته ـ

**شینګړه** :ـ (شي+ن+ګ+ړ) [اس ـ مو] شینګاړه ـ متیزه ـ هغه ښځه چې د خپل مور پلار د اجازت نه بغېر چا سره وتښتي ـ

**شینګړئ** :ـ (شي+ن+ګ+ړ+ئ) (اق ـ اس ـ مؤ) (و ـــــ شینګړه)

**شینګلے** :ـ (شي+ن+ګُ+لَے) (ق ، اس ـ مذ ، ج ـ لي) (۱) شین ګل ـ یو خاص قسم بوټے دے چې په پالیزونو کښې پیدا کېږي ـ (۲) یو قسم بوټے ـ چې د غنمو په فصل کښې پیدا کېږي ـ خوند ئې خوږ وي ـ شنۀ یا ابي ګلونه لري ـ د اوښ غلانځه هم ورته وائي ـ کاسني ـ شمکے ـ (په دوایانو کښې هم استعمالېږي) ـ

**شینګولے** :ـ (شي+ن+ګو+لے) (اس ـ مذ ، ج ـ لي) شمکے ـ تریځه ـ مشهوره ګیاه ده

**شینګے** :ـ (شي+ن+ګے) (اس ـ مذ ، ج ـ ګي) یو بو ـ هغه اس چې د سورلئ د پاره نۀ پکارېږي او بارونه پرې وړے شي ـ باري اس ـ ټټو ـ

**شینو** :ـ (شي+نو) (اس ـ مذ) (۱) هغه کس چې سترګې ئې شنې وي ـ شین سترګے ـ (۲) د ځینو شین سترګو د نوم په طور هم وایۀ شي ـ

**ــــ ټے** :ـ (ټے) د شینو تصغیر دے ـ خو عموماً د سپکوالي په طور (چاته

وایۀ شي

**ـــــ ګی**:- (ګَ+ی) د شینوګي تانیث دے - د شنو سترګو واله جینۍ-

**ـــــ ګے**:- (ګے) د شینو تصغیر - شین سترګے هلک -

**شینوبے** :- (شي+نو+بے) (اس - مذ ، ج - بي) **هغه شوملې چې شنې اوبۀ وي -** نرمې او اوبۀ شوملې - تروې-

**شینولے** :- (شي+نو+لَے) (اس - مذ ، ج - لي) د شیشې جوړې شوې وړې ګولۍ چې هلکان ورسره لوبې کوي - بلورے -

**ـــــ کول**:- شینو لو سره لوبې کول - بلورو سره لوبې کول -

**شینه** :- (شي+نَ) (اس - مو ، ج - لے) یوه جلدي ناروغي ده - (و---- سینکے)

**شینۍ** :- (شي+نَ+ی) (اس - مو) د "شینے" تانیث دے - شین سترګې ښځه -

**شینے** :- (شي+نے) (و----- شینو)

**شینے** :- (شي+نَے) (اس - مذ ، ج - نې) یو قسم غټه ننکۍ ده چې عموماً په لاسونه پښنو په تلي کښې خیژي - (خیجي) -

**شینے** :- (شي+نے) (اس - مذ ، ج - نې) درغوسپږۍ -

**شینے** :- (شي+نے) (اس - مذ ، ج - ي) یوه غرنۍ ونه ده چې وړې وړې دانې کوي چې خلق ئې خوري - (فا - خنجک)

ښـــولنے اینځـــر کـــر کـــنې کـــریـــړي شیـنے
هندوانې بادرنګ فلسي کمرک کرفشار مست (دولت)

**شینېدل** :- (شي+نې+د+ل) (مص لا) شین کېدل - زرغون کېدل - راټوکېدل -

**شینے شینګے** :- (شي+نے+شي+ن+ګے) (اس - مذ) د هلکانو د یوې لوبې نوم دے - ټوپۍ پټول -

**شېو** :- (شے+و) (انګ - اس - مذ) حجامت - ږیره خرئینه -

**ـــــ کول**:- ږیره خرئیل - ږیره کلول - حجامت کول -

**شېوا** :- (شې+وا) (ف - سابقه) نورو الفاظو نه وړاندې لګولے شي او د فصیح او بلیغ معنٰی ورکوي -

**ـــــ بیان**:- (بَ+یا+ن) (ف تر - صف - مذ ، مو - ه)فصیح او بلیغ ګفتګو کوونکے - فصاحت او بلاغت سره خبرې یا تقریر کوونکے-

**ـــــ زبان**:-(زَ+با+ن) (و------ شیوابیان)

**شېور** :- (شې+وَ+ر) (انګ - اس - مذ ، ج - ونه)(۱) د حجامت کولو (ږیره خرئیلو) د بجلۍ مشین-(۲) د چرګانو یو قسم -

**شیوعي** :- (شُ+یو+عي) (ع - صف)فرقو سره تعلق لرونکے - فرقه وارانه ډله ایز -

**شیوعیت** :- (شُ+یُو+عَي+يَ+ت) (ع - اس) فرقه پرستي - ډله بندي -

**شېون** :- (شې+ؤ+ن) (ف - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) ژړا - جړا - فریاد -

مه مانې وے مه عتاب وے
پـــه رقیب شېـــون وے تل (خوشحال)

(۲) غم - ویر - ماتم -

نول د تن د ځان شېون د زړۀ اشوب
یـــوه څـــۀ بـــده بلا ده عاشق توب (خوشحال)

**ـــــ کول**:- (فریاد کول - ژړانګوله کول - وېر کول -

**شېونګ** :- (شې+و+ن+ګ) (انګ - صف) د ږېرې خرئیلو سره متعلق -

**ـــــ برش**:- (ب+رَ+ش) (انګ - تر) **هغه خاص قسم برش چې د ږیرې خرئیلو په وخت صابون وغېره پرې مرلے کېږي - د حجامت برش -**

**ـــــ کریم**:- (ک+ري+م) (انګ - تر - جم) **هغه ملهم شان چې د صابون په طور د حجامت د پاره په وېښتو مرلے شي - د حجامت کریم -**

**شېوه** :- (شې+وَ) (ف - اس - مو ، ج - شېوے)(۱) ښېوه - کیځ مکیځ - ناز نخره - (۲) طور - طریقه - عادت - خوي -

دا څۀ دور د ګر ګون راغے وخت نور شه
چې شېوه د عـــادلانـــو ظلـــم زور شـو (حمید

**ـــــ کول**:- نازنخره کول - مکیځ کول -

**شېوه ګر** :- (ګَ+ر) (اس - صف - مذ ، مؤ - ګره) نازنخره کوونکے - کیځ مکیځ کوونکے

چې دا هسې وروځې غوټه کړې خبرې
بـــد خـــواهـــان پـــه زړۀ کاشېوه کړې (خوشحال)

**ـــــ ګري**:- (ګَ+ري) (ف - تر - اس - مو) نازنخره - کیځ مکیځ -

**شېوه** :- (شې+وَ) (صف) ښکته - کوز -

**ـــــ کول**:- ښکته کول - ورځړول -

کـــه پـــه غونډو مېوه ولے
درخت شېوه کا پخپله وربے (ارزاني)

**ـــــ کېدل**:- ښکته کېدل - ځړېدل - زوړندېدل - لکه ستا د لاسه ګور ته شېوه شوه

**شېوے** :- (شې+وے) (اس - جم) د شېوه جمع ده - ښېوے خېوے - نازونه - نخرې - کېځونه مکېځونه -

**ـــــ کول**:- ناز نخرې کول - کیځونه مکیځونه کول -

**شئیر** :- (شے+ئ+ر) (انګ - اس - مذ ، ج - ونه)حصه - برخه - ونډ - سهم-

**ـــــ هولډر**:- (هو+ل+ډ+ر) (انګ - اس - مذ ، ج - ان ،مو - ه)حصه دار - برخه لرونکے - سهم لرونکے - سمدار -

◈◈◈

# ښ

**ښ** :- ښ (خین) د پښتو د الفباء خاص توری دی چې اصلاً خو د دریو اوازونو نمائندګي کوي خو عام طور سره ترې دوه اوازونه مراد دي - یعني خ او ش - په پښتو کښې ډېر الفاظ داسې دي چې د یو حرف اواز ئې په ځینو قبیلو (خصوصاً قطبي قبائل) کښې د خ دی او په ځینو (خصوصاً سهېل ، جنوبي) قبائلو کښې د ش په اواز تلفظ کېږي او د ترتیب په لحاظ سره د پښتو د الفباء درویشتم توری دی - مثال "ښکر" لفظ ځینې قبیلې "خکر" (خ سره) تلفظ کوي او ځینې قبیلې "شکر" (ش سره) تلفظ کوي - دغي لوی اختلاف له کبله دا نوی توری وضع کړی شوی دی او دې (توري دریم اواز د ژبې څۀ قدرې په شا اړولو ، او د ش د مخرج نه لږ دننه طرف ته مخرج "ن" ویستے شي) -

**ښاپرک** :- (خا/شا+پ+رَ+ک) (و----- شاپېرک)

**ښاپېرک** :- (خا/شا+پې+رَ+ک) (اس - مذ ، ج - ان) مشهور ځناور - اصلاً دا لفظ شب پرک یا شوپرک دی - یعني د شپې الوتونکے - ددې ځناور یو څو خصوصیتونه دي - یو پکښې دا دی چې د ورځې په رڼا کښې د تررږمۍ نه پس الوتل شروع کړي او په هوا کښې ماشي وغېره خوري - ځکه ورته ځینې خلق "ماښام پرک" هم وائي - بل خصوصیت ئې دا دی چې د مرغو په شان الوځي خو اګۍ نه اچوي - بلکې د پیه ورو ځناورو په شان بچي راوړي -

د کـریز بـڼې مې توې لکه د باز شوې
ګمان مه کړه چې بې پرونو ښاپېرک یم (خوشحال)

**ښاپېرۍ** :- (خا/شا+پې+رَ+ۍ) (ښاپېریان) (اس - مو) (۱) اصلاً شاه پرۍ دی - یعني لویه یا زیاته ښائسته "پرۍ" - "پرۍ" (ف:پري) یو فرضي نوراني مخلوق دی - چې بنیادمو ته عام طور نۀ ښکاري - دا مخلوق الوتے شي او په ان فن کښې د دنیا د یو سر نه بل سر ته رسېدے شي - کله کله بنیادمانو ته هم ځان ښکاره کړي او بنیادم پرې مئین شي - د بنیادمو (شاهزادګانو) او ښاپېرو ډېرې فرضي قصې مشهورې دي - (۲) مجازاً ډېرې زیاتې ښکلې پېغلې ته هم ښاپېرۍ وائي -(۳) د زنا نه ؤ د نوم په طور هم استعمالېږي -

**ـــــ د سمندر**:- (دَ+سَ+مَ+ن+د+ر) (اس - مو) یوه فرضي ښاپېرۍ چې په سمندر کښې وي چې سر ئې د ښکلې ښځې دی او نور وجود ئې د کب دی - (ه------ جل پري) -

**ښاپېرے** :- (خا/شا+پې+رَے) (اس - مذ ، ج - ي) د ښاپېرۍ مذکر دی - یعني نر ښاپېرے یا لوے پېرے - پېرے هم یو فرضي ښکلے مخلوق دی چې بنیادمو ته نۀ ښکاري - ډېر زور قوت لري - کله کله بنیادمو ته ښکاره شي - بلکې په ځینو ښکلو ښځو مئین هم شي - دا اصلاً یوه بیماري ده - "پېریان" ددې لفظ جمع ده -

**ښاځ** :-(خا / شا+(د)+ز) (اس - مذ ، ج - ونه) غرور - لوئي - کبر - دنیاوي تکبر -

**ښاځېدل** :- (خا/ شا+(د)زې+د+ل) (مص) غرور کول - لوئي کول - کبر کول - خصوصاً په دنیوي مال وغېره نازېدل -

**ښاځېدنه** :- (خا/ شا+(د)+زې+د+نَ) (حمص) د دنیا په مال جائیداد وغېره لوئي کوونه - غرور - کبر کوونه -

**ښاځېدونکے** :-(خا/ شا+(د)+زې+دُو+ن+کَے) (اس - فا ، ج - کي) د دنیا په مال جائیداد وغېره فخر او لوئي کوونکے -

**ښاڅ** :- (خا/ شا+(ت) س) (و----- ښاځ)

**ښاڅه** :- (خا/ شا+(ت) س) (اس - مؤ ، ج - څې) تکبر - لوئي - غرور -

د بـادشـَاه ښـاڅـه دو کـړه
کاشکے خلاص شې له نادانه (واصل)

**ښاڅېدل** :- (خا/ شا+(ت)سې+د+ل) (و----- ښاځېدل)

**ښاڅېدنه** :- (خا/شا+(ت)سې+د+نَ) (و----- ښاځېدنه)

**ښاڅېدونکے** :- (خا/شا+(ت)سې+دُو+ن+کَے) (و----- ښاځېدونکے)

**ښاخ** :- (خا/شا+خ) (اس - مذ ، ج - ونه) (۱) د ونې غټه څانګه -(۲) د نسب لویه سلسله - (۳) د کومې ادارې وغېره څانګه - د لوئې ادارې وړوکے یا مقامي دفتر - شعبه (برانچ) - (۴) ښکر -

**ـــــ بري کېدل**:- شاخ تراشي کېدل - د سپرلي نه وړاندې د ونو فالتو څانګې پرې کول -

چې په ژمي ښاخ بري اوشي د ونې
په بهار کښې ئې لاښۀ وي پر و بال (خوشحال)

**ـــــ دار**:- (دا+ر) (صف - مذ ، م -ه) ښاخونو والا - څانګو والا -

**ښاخلن** :- (خا/شا+خ+ل+ن) (صف - مذ ، مو - ه) (۱) ښاخونو والا - ښاخدار - (۲) هغه اداره وغېره چې (ګڼ) ښاخونه لري -

**ښاخله** :- (خا/شا+خ+لَ) (اس - مو ، ج - لے) (۱) وړوکے ښاخ - وړه څانګه - (۲) د کومې ادارې وغېره وړه څانګه -

**ښاخه** :-(خا/شا+خَ) (اس - مو ، ج - خے) وړه لار - تنګه لار - د پیاده ؤ نرۍ لار -

**ښاخۍ** :- (خا/شا+خَ+ۍ) (اس - مو) د زمیندارانو هغه اله چې په سر کښې (عموماً) درې غاښې لري - چې درمن پرې الوزوي - سه شاخه -

**ـــــ کول**:- لکے ښانګے پورته کول او په زمکه راویشتل - بانګۍ کول

**ښاد** :- (خا/شا+د) (صف - مذ ، مو - ه) خوشحاله - شاد -

**ـــــ شے/شي**:-(شے/شي+ئ)(دعائیه جمله) خوشحاله شې - خوشحاله اوسې -

**ـــــ کول**:- (و------ ښادول)

**ـــــ مند**:- (مَ+ن+د)

**ـــــ من**:- (م+ن) خوشحاله - خوشحالي لرونکے -

**ښادمني** :- (خا/شا+د+مَ+ني) (اس ـ مو) خوشحالي ـ مسرّت ـ
**ـــــ نامه**:ـ (نا+مَ) (اس ـ مؤ ـ ج ـ نې) د خوشحالۍ وخت ـ
**ـــــ نامې**:ـ (نا+مې) (اس ـ ج) (۱) د ښادنامه جمع ـ ډېرې خوشحالۍ ـ (۲) د ښادنامه اضافي مجروري وغېره شکل ـ
**ـــــ کول**:ـ خوشحالۍ کول ـ ډېرې خوشحالۍ ځرګندول ـ
**ښادان** :- (خا/شا+دا+ن) (صف ـ مذ ، مو ـ ه) شادان ـ شاد ـ خوشحاله ـ
**ښادکه** :- (خا/شا+د+کَ) (اس ـ مو ، ج ـ کې) د ښادي تصغير دے ـ

چې مرګے شته ښادکه نۀ شته
چتې دې نۀ کوي په تورو ځنو مينه (ټپه)

**ښادول** :-(خا/شا+دَ+ؤ+ل) (مص) خوشحالول ـ ښاد کول ـ خوشحالي ورکول ـ
**ښادونګ** :- (خا/شا+دَ+ؤ+ن+ګ) (ق ـ حمص) (وـــــ ښادونه)
**ښادونه** :-(خا/شا+د+ؤ+نَ) (حمص) خوشحالوونه ـ ښاد کونه ـ خوشحالي ورکوونه
**ښادۍ** :- (خا/+دَ+ى) (۱) د "ښادي" جمع ده ـ (۲) د "ښادي" اضافي او مجروري شکل دے ـ
**پهـــــ ښادېدل**:ـ د چا په خوشحالۍ خوشحالېدل ـ چا سره په خوشحالۍ کښې شريکېدل ـ د کوم خوشحالونکي له کبله خوشحالي کول ـ

په ښادۍ ئې هېڅ ښاد مه شې کا دانا ئې
غم ښادي دې ددې دهر څنګ په څنګ (رحمان بابا)

**په غمـــــ کښې شريکېدل**:ـ په هر قسم حالاتو کښې چاسره ګډون کول ـ د خوشحالۍ په موقع هم او د غم په موقع هم ـ
**ښادي** :- (خا/شا+دي) (اس ـ مو) خوشحالي ـ د خوشحالۍ موقع، خصوصاً د وادۀ خوشحالي ـ
**ـــــ کول**:ـ خوشحالي کول ـ خوشحالي جوړول ـ مجازاً وادۀ کول ـ
**ـــــ کېدل**:ـ (۱) خوشحالي کېدل ـ وادۀ کېدل ـ

لابه کله د خلاصۍ زېرے وشي
چې ښادي مې شي په اهل په عيال (خوشحال)

(۲) زېرے کېدل ـ

د هجران محنت به واړه فراموش شي
که ښادي رابانديې وشي د وصال (خوشحال)

**ـــــ اَلي**:ـ (اَ+لي) ښادۍ والا ـ هغه کس مراد دے څوک چې ښادي ګرموي ـ يعني ډمان چې په ډولکو سرنا ګانو او په بېن باجو ښادۍ کښې خوند رنګ پېدا کوي ـ ("الي" اصلاً د اهل وران شکل دے ـ يعني دا لفظ اهلِ ښادي دے خو عموماً د جمع په شکل کښې "الي ښاديان" وئيلے کېږي) ـ
**ـــــ ښادي**:ـ (شا/خا+دَ) (اس ـ مو) تشه خوشحالي ـ مکمله ښادي ـ هر طرف نه خوشحالي ـ پوره خوشحالي ـ
**ـــــ غم**:ـ (غَ+م) غم او خوشحالي ـ مختلف قسمه وختونه يا موقعې ـ
**غمـــــ وروړ خور دي**:ـ محاوره ـ په بنيادم کله د ښادۍ وخت راشي ـ خوشحالي ورکړه پېښه شي او کله پرې څۀ غم راشي ـ
**ښادے** :- (شا/خا+دے) (اس ـ ج ـ مؤ) د خوشحالۍ په موقع د خاص قسم سندرې چې ښځې ئې په جمع وائي ـ
**ـــــ وئيل**:ـ د خوشحالۍ سندرې وئيل ـ
**ښاديانه**:- (شا/خا+د+يا+نَ) (اس ـ مو ، ج ـ نې) (۱) خوشي ـ خوشالي ـ (۲) د خوشحالۍ سندرې ـ شاديانه ـ (د فارسۍ د "شاديانه" بدل دے) ـ

**ښادېدل** :- (خا/شا+دې+د+ل) (مص) خوشحالېدل ـ خوښي کول ـ
**ښادېدنه** :- (خا/شا+دې+د+نَ) (مص) خوشحالېدنه ـ خوښي کوونه ـ
**ښادېدونکے** :-(خا/شا+دې+دُو+ن+کَے)(اس ـ فا ـ ج ـ کي) خوشحالېدونکے ـ خوښي کوونکے ـ
**ښار** :- (خا/شا+ر) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) ښهر، شهر ـ خهر ـ خار ـ ښار ـ شار ـ
**ـــــ د علوم**:ـ (وـــــ ښار د علوم)
**ـــــ سازي**:ـ (سا+زي) (اس ـ مؤ) د ښار ابادونه ـ د ښار تعمير ـ ښار جوړوونه ـ
**ـــــ وال**:- (وا+ل) (صف ـ مذ ـ مو ـ ه) (۱) د ښار اوسېدونکے ـ ښارے ـ (۲) ښار سره تعلق لرونکے ـ
**ـــــ والے**:ـ (وا+لے) (اس ـ مذ) د ښار سره تعلق ـ د ښار سره نسبت ـ ښاري توب ـ لکه د ښار وال رئيس ـ
**ښارک** :- (خا/شا+رَ+ک) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه)(۱) هغه وړوکے موږے شان چې د مېچنې د پل په سوري کښې راوتے وي او د غه پل پرې چورلي ـ تيرک ـ (۲) د دوښۍ د لرګي سر پوښ چې په مېنځ کښې ئې سورے وي او منداڼو په دغه سوري کښې ګرځي ـ
**ښارګ** :- (خا/شا+رَ+ګ) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) شه رګ ـ د مرۍ هغه لوے رګ چې پرې کړے شي نو بنيادم بيا ژوندے نه شي پاتې کېدے ـ
**ـــــ د چا تينګول**:ـ د چا مرګ ژواک په خپل لاس کښې راوستل ـ د چا داسې څيز (لکه زوے وغېره) په قبضه کښې راوستل چې د غه سړے هرې مطالبې ته په غاړه کښېدو مجبور شي ـ پوره طور سره په قابو کښې راوستل ـ
**ـــــ د چا نيول**:ـ (وـــــ ښارګ تينګول د چا)
**ښارګه** :- (خا/شا+ر+کَ) (اس ـ مو ، ج ـ ګې) ښارونۍ ـ ښارو ـ مېنا ـ

هر څوک په ده اواز کا
که طوطا دے که ښارکه (ارزاني)

**ښارګے** :- (خار/شار+ګے) (عف ـ مذ) بېهوښه ـ سخت وارخطا ـ
**ـــــ کېدل**:ـ د ويرې او وهم له کبله سخت وار خطا کېدل ـ وارخطائي راتلل ـ د څۀ څيز ډېر اثر اخيستل لکه فلانے له وهمه ښارګے شو ـ
**ښارګے** :-(شا+رَ+ګَے) (اس ـ مذ ، ج ـ ګي) د شارګ "ښ" سره ليکل درست نه دي ځکه چې "خارګے" هېڅوک نۀ وائي خو ځينو خلقو داسې ليکلے دے ـ
**ـــــ کېدل**:ـ د ملا رګ بې ځايه کېدل ـ څک کېدل ـ
**ښارمه** :- (خا/شا+ر+مَ) (اس ـ مو ، ج ـ ے) اشاره ـ زرنګه ـ ايماء ـ
**ـــــ ښارنے**:ـ (خا/شا+ر+نے) (صف ـ مذ ، مو ـ نۍ)ښار سره تعلق لرونکے ـ د ښار جوړ شوے ـ(د کلي په مقابله کښې) ـ لکه ښارنے خلق ـ
**ښارنے** :- (خا/شا+ر+نَے) (اس ـ مذ ، ج ـ ني) ښارے ـ د ښار اوسېدونکے ـ
**ښارو** :- (خا/شا+رو) (اس ـ مو ، ج ـ ګان)مشهوره مرغۍ ـ ښارونۍ ـ مېنا ـ
**ښارو** :- (خا/شا+رو) (اس ـ مذ ، ج ـ ګان) د چرګانو په پښه کښې وروستو طرف ته يو تېره خار راوتے وي ـ چرګان په جنګ کښې په دې باندې يو بل زخمي کوي ـ
**ـــــ کول**:ـ مجازاً لوئېدل ـ د جنګ قابل کېدل ـ زور پکښې راتلل ـ کنايه ځوانېدل ـ زلمے کېدل ـ
**ـــــ کېدل**:ـ مجازاً لوئېدل ـ د جنګ قابل ګرځېدل ـ په زور کښې کېدل ـ کنايه: ځوانېدل ـ زلمے کېدل ـ
**ښارونۍ**:-(خا/شا+رُو+نَ+ى) (اس ـ مو) مشهوره مرغۍ ـ ښارو ـ مېنا ـ خارونۍ
**ښاره** :- (خا/شا+ر+ه) د ښار بدل شکل دے چې عموماً مجروري حالت کښې استعمالېږي ـ"د جمعې نمونځ دې په جماعت کښې نه که په ښارۀ يا په

کلي کښې له جماعت سره د نماسپين کا له امامه" (خېرالبيان)

**ښاره** :- (خا/شا+رَ) (اس ـ مو ، ج ـ رے) (۱) لوے کلے ـ قصبه ـ وړوکے ښار ـ ښاريه ـ ښاريه ـ (۲) اشاره ـ رمز ـ

**ښاره** :- (خا/شا+رَ) (اس ـ مو ، ج ـ ښارے) اشارت ـ زرنګه ـ پيچمے ـ

**ښاري** :- (خا/شا+ري) (صف) (۱) ښار سره متعلق لکه ښاري ژوند (د کلي ژوند په مقابله کښې) ـ (۲) د "ښارے" اضافي او مجروري شکل ـ

**ښاغپ**:-(خا/شا+غَ+پ) (صف ـ مذ ـ مو ـ ه) اوږے ـ حرصي ـ حريص ـ وږ سترګے

**ښاغل** :- (خا/شا+غ+ل) (مص مت) (۱) اراسته کول ـ ښکلا ورکول ـ (۲) چونګ کول ـ موزه کول ـ منتخب کول ـ (۳) ښۀ ګڼل ـ احترام کول ـ

**ــــ توب**:- (تو+ب) ښۀ کېدل، د احترام جوګه کېدل ـ

**ــــ تيا**:- (ت+يا) ښکلا ـ ښۀ والے ـ ښکلے ښکارېدنه ـ غوره والے ـ مقبوليت ـ

ښۀ سرے پردے پـه دلاسه پـه ښکې خپل کا

کومه ښاغلتيا ده چې څوک بد کا زړۀ د يار خپل (خوشحال)

**ښاغلے** :-(خا/شا+غ+لے) (اس ـ مذ ، ج ـ لي) (۱) جناب ـ اقا ـ صاحب ـ محترم ـ (۲) ښۀ ـ د ښو صفتونو خاوند ـ ښکلے ښکارېدونکے ـ

مړۀ هغه چې نه ئې نوم نه ئې نشان وي

تـل تر تـله پـه ژونـدون پـائـي ښـاغلي

[تـل تـر تله پـه ښـۀ نـام پـائـي ښاغلي] (خوشحال)

(۳) د ستر او عزتمند سړي دنوم نه اول احتراماً ليکلے شي ـ جناب ـ

**ــــ ګڼړل[ګڼل]**:- غوره ګڼل ـ منتخب ګڼل ـ ښۀ ګڼل ـ احترام کول ـ

پـارسـي شـعـر مـې هم زده سليقه لرم د دواړو

پښتو شعر مې خوښ شۀ هر څوک خپل ګڼي ښاغلي (خوشحال)

**ښالنګ** :-(خا/شا+ل+ن+ګ) (صف ـ مذ ، مو ـ ه) (۱) هغه کس چې پښې ئې کږې وي ـ کجے ـ (۲) ځوړند ـ معطل ـ اټال ـ ايسار ـ

**ــــ کول**:- (څۀ کار) ايسارول ـ اټالول ـ معطل کول ـ

**ــــ کېدل**:- (۱) پښې کږېدل ـ کجے کېدل ـ (۲) معطل کېدل ـ ايسارېدل يا اټاليدل ـ (څۀ کار) ـ

**ښـالېځ** :- (خا/شا+لي+لې+(د)ز) (صـف ـ مـذ ، مـو ـ ه) (۱) ښـېرازه ـ سـر سبز و شاداب ـ تر و تازه ـ (۲) خوشحاله ـ شادمان ـ

**ښـاليځي** :- (خا/شـا+لِي+(د)زي) (اس ـ مـو) (۱) تروتـازګي ـ طـراوت ـ شـادابي ـ (۲) خوشحالي ـ

**ښالېز** :- (خا/شا+لې+ز) (وــــ ښالېځ)

**ښاليزي** :- (خا/شا+لي+زي) (اس ـ مو) (وــــ ښاليځي)

**ښـامار** :- (خا/شـا+ما+ر) اس ـ مذ ، ج ـ ان "د شـاه مـار" بـدل شکل دے ـ لوئې مار ـ اژدها ـ

سپين چندڼ لره ورته ښۀ چې ئې وخوړ

چې ئې نـۀ کړ پـــه ښامار بـاندې نظر (خواجه محمد)

**ښامار**:-(خا/شا+ما+ر) (اس ، مذ ، ج ـ ان ، مو ، ه) (۱) هغه کس چې ډېر دولت ئې جمع کړے وي او خرڅ ترې نۀ کوي ـ (مشهوره ده چې چېرتـه پـه زمکه کښـې پخـوانۍ خزانـه وي نـو پـه هغې يـو ښـار پـروت وي) ـ (۲) لـوئې ـ طاقتور ـ دښمن چې مقابله ئې ګرانه وي ـ

**ښاندۀ** :- (خا/شا+ن+د) (اس ـ مذ) پېژندنه ـ شناخت ـ معرفت ـ تعارف ـ تعلق ـ

**ــ کېدل**:- پېژندګلو کېدل ـ شناخت کيدل ـ تعلق پيدا کېدل ـ

**ښانده** :- (خا/شا+ن+د) (حمص) شيندنه ـ نوستنه ـ قربانونه ـ

**ښانک** :- (خا/شا+نَ+ک) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) (۱) لويه خاورينه سينۍ ـ (۲) د لرګي لويه سينۍ ـ لنډے حلال نه ښانک په سر نيولے ـ (متل)

**ــــ ګوټې**:- (ګو+ټې) د ښانک تصغير ـ ښانکے ـ وړوکے ښانک ـ

**ښانکے** :- (خا/شا+نَ+کَے) (اس ـ مذ ، ج ـ کي) د ښانګ تصغير ـ وړوکے ښانک ـ ښانک ګوټے ـ

**ــــ وهل**:- ډک ښانک خوړل ـ ډېر زيات مقدار کښې خوراک کول ـ ډک ډک ښانکي خوړل ـ

دا چې ګرځي کښېني پاڅي پانځي لنډے

ښـانـکي وهـي دربـلـي څـربـې لـنډے (خوشحال)

**ښـانګو** :- (خا/شـا+ن+ګ+ر) (اس ـ مـذ) د لاسـونو او ډېښـو ناڅاپـه خاربښت راختـل ـ ځيني خلق دا پال نيسي او د کوم مېلمه د راتلو پال ئې ګڼي ـ ځيني خلق ورته څانګه هم وائي ـ ښنګړ ـ

**ښانګو** :- (خا/شا+ن+ګو) د "ښانګے" اضافي او مجروري شکل دے ـ

ياري د دنګې جينۍ خوند کا

چې سختي راشي يار په ښانګو پټوينه (ټپه)

**ښانګه** :- (خا/شا+ن+ګَ) (اس ـ مو ، ج ـ ګے) د دواړو ساقونو د مېنځ ځاے ـ د زنګونو نه بره دننه طرف ته ځاے ـ پټون ـ

**ــــ غزول**:- پښنه غزول ـ پښنه اوږدول ـ ښپه غزول ـ

هر قدم د کاملانو په قدم ږده

تر حد وړاندې مه غزوه ښانګه (دولت)

**ــــ ور**:- (ؤ+ر) (صف ـ مذ ، ج ـ ه) لويو ښانګو والا ـ لويو پښنو والا ـ

**ــــ مېږے** :- (مې+ګے/ژے) (اس ـ مذ ، ج ـ ږي) د مېږو يو قسم چې اوږدې اوږدې پښې لري ـ

**ښانګۍ** :- (خا/شا+ن+ګَ+ی) (اس ـ مو) درې غابنې ـ ښاخې ـ

**ښـانګے** :-(خا/شـا+ن+ګے) (۱) د "ښـانګه" جمـع ده ـ (۲) د "ښـانګه" اضـافي او مجروري شکل ـ

**ــــ وانګے**:- (وا+ن+ګے) (صف) شاولے واولے ـ وران وران ـ

**ــــ پريوتل**:- شاولے واولے پريوتل ـ سست پست بې ترتيبه پريوتل چې پښې ئې يو خوا بل خوا تلې وي ـ

**ښاوات** :- (خا/شا+وا+ت) (اس ـ مو) زمکه چې يو قلبې کرلې وي ـ د يوې قلبې زمکه ـ

**ښاوندي** :- (خا/شا+ؤ+ن+دي) (اس ـ مذ ، ج ـ دي) سرواخ ـ سربند ـ

**ښاهه** :- (خا/شا+ۀ) سنبهل کېدنه ـ عاق کېدنه ـ عاق ـ

**ښائست** :- (خا/شا+ء+س+ت) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) ښکلا ـ حسن ـ زېبای ـ

ستا د ښائست ګلونـه ډېر دي

جولۍ مې تنګه زه به کوم کوم ټولومه (ټپه)

**ــــ کول**:- ښکلے ښکارېدل ـ ښائسته ښکارېدل ـ

دُر هله ښائست کا چې بېرون شي له صدفه

ستـا دنـدان طامـع دي انـدرون په دهن لا (حافظ)

**ــــ موندل**:- ښائسته کېدل ـ ښکلے کېدل ـ ارائش کېدل ـ

**ښائستوکے** :- ښائسته کېدل ـ ښکلے کېدل ـ ارائش کېدل ـ

**ښائسته** :-(خا/شا+ع+س+تَ) (صف) ښکلے ـ ښائست والا ـ حسن والا ـ

**ښائسته** :-(خا/شا+ع+س+تَ) (اس) حسن لرونکے ـ ښائست لرونکے ـ حسين ـ

**ــــ ګوټے**:- (ګو+ټے) (اس ـ مذ ، ج ـ ټي) (وــــ ښائستوکے)

**ښائي**:- (خا/شا+ئي) (تف) (ورسره) جوړېږي ـ مناسب دي ـ پکار دي ـ بايد چې ـ

ښائي دا که زۀ خپل يار وته سجده کړم

هغـه يـار زمـا قـبلـه دے د حاجات (رحمان بابا)

**ښائېدل** :-(خا/شا+ئي+د+ل) (مص) مناسب بودل ـ موزون بودل ـ جوړېدل ـ

**ښائېدنه** :- (خا/شا+ئي+د+ن+ه) (حمص) مناسب لرنه ـ جوړېدنه ـ

**ښائېدهٔ** :- (خا/شا+ئې+د+هٔ) (حمص) مناسبت لرنه ـ موزون "بودنه". جوړېدنه پکار "بودنه" ـ

**ښائیست** :- (خا/شا+ئي+س+ت) (وــــ ښائست)

ــــ **والے** :- (وا+لے) (وــــ ښائست والے)

ــــ **موندل**:- (وــــ ښائست موندل)

**ښپو** :- (خ+پو) د "ښپې" جمع اضافي او مجروري شکل ـ

ــــ **ته اړنګے اچول**:- په لاره کښې خنډ کېدل ـ د راپرزولو یا د ناکام یابه کوښښ کول ـ

ــــ **ته پیکړے اچول**:- (۱) پښو ته زولانې اچول ـ (۲) ذمه واري ور په اړه کول (۳) مجازاً چاله وادهٔ کول ـ

ــــ **تهٔ کتل**:- د اسمان په ځاے ښکته کتل ـ ځان پېژندل ـ (پېجندل) ـ خپل حېثیت پېژندل (پېجندل) ـ خپل عیب ته نظر کول ـ (وائي چې د طاؤس ښپې ډېرې بد رنګې دي ـ دې خپلو وزرو ته وګوري نو غرور پکښې پیدا شي خو چې ښپو (پښو) ته وګوري نو شرمنده شي)

ــــ **لګولو ته نه پرېښودل**:- ښپې ټینګولو ته نهٔ پرېښودل ـ کامیابه کېدو ته نهٔ پرېښودل ـ

ــــ **په خپلو**:- مجازاً پیاده ـ (د سور په مقابله کښې)

**په ــــ پر پوتل**:- ډېر زیات منت زاري کول ـ عاجزي څرګندول ـ

**په ــــ کښې ورل** څیز:- سخت غلاګرکړ "بودل" ـ

**په ــــ کول**:- پېزار جرابې وغېره په ښپو کښې اچول ـ

**د سر نه تر ــــ پورې**:- سر تاپا ـ تمامي وجود ـ ټول بدل ـ

**د ــــ په سر کښېناستل**:- داسې کښېناستل چې په زمکه صرف د ښپو (پښو) تلې لګېدلې وي او ټول زور په ښپو (پښو) وي ـ

**د ــــ ګوتې**:- د ښپو (پښو) ګوتې ـ (د لاس د ګوتو په مقابله کښې) ـ

**د ــــ (لاندې) نه زمکه تښتېدل**:- (۱) سخت وار خطا کېدل ـ وارخطاې راتلل ـ (۲) سخت حېرانېدل ـ

**د ــــ مزل**:- پیاده مزل ـ (د سور په مقابله کښې)

**د ــــ وینې سر ته راتلل او د سر وینې ښپو له تلل**:- مجازاً سخت محنت مشقت کول ـ ډېر سخت کار کول ـ

**ښپه** :- (خ+پَ) (اس ـ مو ، ج ـ ے) د بدن هغه عضو چې بنیادم پرې ګرځي ـ پښه (ف پا ، اُر پیر) ـ

ــــ **اړول**:- سورېدل ـ (په اس وغېره د سورېدلو د پاره اول یوه ښپه پرې اړولے شي)

ــــ **اوچتول (د سپي)** :- کنایه: څوانبدل ـ لوئېدل ـ (سپے چې وړوکے وي نو د متیازو کولو په وخت ښپه (پښه) نهٔ اوچتوي خو چې لوے شي ـ نو بیا وروستې یوه ښپه او چتوي) ـ

ــــ **اوړدول (ور ، ار ، درسره)** :- تګ راتګ چا سره شورو کول ـ تګ راګ زیاتول ـ

ــــ **بې ځایه کښېښودل**:- (۱) هلته تلل چېرته چې چاله تلل نهٔ وي ـ پکار (۲) غلط قدم اخستل ـ غلط کار کول ـ

ــــ **په ښپه**:- (پَ+خ+پَ) (تف) د ښپې د پاسه بله ښپه اېښې ـ په ځاے ناسته

ــــ **پــه ښــپــه اړول**:- (۱) د یــوې پښــې پتــون د بلــې پښــې د پتــون د پاســه کښېښودل ـ مجازاً کښېناستل ـ هېڅ کار نهٔ کول ـ (۲) فخر یا شان سره کښېناستل ـ

ــــ **په ښپه کېناستل**:- بېکاره کښېناستل ـ چېرته د تللو یا د څهٔ کار کولو حرکت نهٔ کول ـ

ــــ **ټینګول ، د چا**:- د چا (کمزوري) مرسته کول ـ د ماتې یا شکست نه بچ کول ـ

ــــ **خوئېدل**:- (۱) خطا کېدل ـ تېر وتل ـ (۲) په خپله وعده وغېره ټینګ نهٔ پاتې کېدل ـ (۳) شکست ته نزدې کېدل ـ مېدان کښې ټینګ نهٔ پاتې کېدل

ــــ **خویــول**:- (۱) خطا ویستل ـ تېرېستل ـ (۲) د وعدې وغېره نه اړول ـ (۳) شکست ته نزدې کول ـ

ــــ **راښکل**:- په کشتۍ کښې د بهرانې سرې د یو پهلوان نېول او راښکل چې بل ئې په اسانه راوپرزوي ـ مجازاً ترقۍ یا کامیابۍ ته نهٔ پرېښودل ـ

ــــ **کښېښودل ، چاته**:- (۱) د روان سړي ښپو (پښ) ته خپله ښپه (پښه) وړاندې کول چې هغه پرې ټینډک وخوري او پرېوځي ـ (۲) چاته تکلیف رسول ـ د چا په لاره کښې خنډ اچول ـ

ــــ **نیولے کېدل**:- په تلو کښې (د څهٔ کار لېدلو ، یا د څهٔ خبرې د اورېدلو د پاره) قدمونه ورکول ـ

ــــ **وهل ، چاته**:- پتون وهل ـ د مقابلې چیلنج ورکول ـ

**د مار ــــ** :- د مار پښې نه وي ځکه د داسې څیز په حقله وائي چې هغه ښخې نهٔ پیدا کېږي نایابه شوے وي ـ د مرغۍ پۍ لکه سوچه غوړي خو د مار پښه شول ـ

**یو ــــ** :- یو ځاے او بله پښه بل ځاے "بودل": په داسې موقع وئیلے شي ـ چې یو سړے په یو ځاے ټیکاؤ نهٔ مومي ـ کله یو ځاے وي او زور ورپسې بل ځاے ته ځي ـ لکه د هغه خو یوه ښپه په کلي کښې وي او بله ئې په ښار کښې وي ـ

**ښپې** :- (خ/پې) (اس ـ ج) (۱) د ښپه جمع ده ـ ډېرې ښپې ـ ډېرې ښپې ـ (۲) د "ښپه" اضافي او مجروري حالت ـ

ــــ **اُباسل**:- یو ځاے نه غلے وتل ـ په پټه تښتېدل ـ تښتېدل ـ

ــــ **اخیستل**:- مجازاً مجالعت کول ـ کوروالے کول ـ

ــــ **ارته**:- (ـــ اَ+ر+تَ) (اس ـ مو ، ج ـ تې) د کوژدن نه پس د جینۍ د کور د زنانهٔ د هلک کورته په اول ځل تلل ـ

ــــ **اړمول**:- (۱) ښپې (پښې) کلکول ـ ځان ټینګول ـ (۲) اصرار کول ـ په کلکه مطالبه کول ـ

ــــ **اسمان ته نیول**:- لویه خبره کول ـ خپل ځان نه اوچت کوښښ کول ـ ډوزې ویشتل ـ چتے د شپې ښپې اسمان ته ونیسي او وائي چې ما اسمان ټینګ کړے دے ـ (متل)

ــــ **اګرې ته کول**:- کنایه ـ مړ کېدل ـ

ــــ **اوږدول**:- د ارام د پاره پښې نېغول ـ ارام کول ـ

ــــ **پړسېدل**:- په ښپو (پښو) کښې پړسوب پیدا کېدل ـ (دا د بیمار وغېره د مرکېدو علامه ګڼلے شي) ـ

ــــ **پورته کول**:- مجازاً ـ مجامعت کول ـ کور والے کول ـ

ــــ **په اوبو کښې کول**:- خپل بد عمل د پاره جواز پیدا کول ـ یا جوړول ـ

ــــ **په زمکه نه لګېدل**:- د زمکې نه اوچت اوچت ګرځېدل ـ کنایه ډېر زیات خوشحاله "بودل" یا ډېر کبر او غرور کول ـ

ــــ **ترپول ، چا پسې**:- پښې دربول ، ویرول ، دب درکه کول ـ رعب کښېنول ـ په چا ـ

ــــ **ترل**:- د تللو یا تښتېدو نه پاتې کول ـ

ــــ **تلل**:- د ښپو (پښو) تلل ـ د ښپو (پښو) تګ کول چېرته چې زړهٔ ځي هلته پښې ځي ـ (متل) ـ

ــــ **تناقې کېدل**:- د ډېر سفر له کبله په ښپو (پښو) کښې تناقې پیدا کېدل ـ مجازاً ډېر اوږد او سخت سفر کول ـ

ــــ **ټینګول**:- ښپې (پښې) کلکول ـ د خوئېدو یا د راښکلے کېدو د مقابلې د

پاره ښپې په زمکه اړمول ـ کلکېدل ـ ځان مضبوطول ـ

ـــــ **چاودل**:ـ (۱) د یخنۍ له کبله د ښپو (پښو) په تلو کښې نرې نرې چاودې پیدا کېدل ـ(۲) نیت کول ـ چېرته تللو ته تیارېدل ـ

ـــــ **دروبه ول ، په چا**:ـ دب دړکه کول ـ ویرول رعب کښېنول ـ

ـــــ **درنېدل**:ـ په ښپو (پښو) باندې بوج زیاتېدل ـ مجازاً ، د ښځې په امېد کېدل ـ حامله کېدل ـ

ـــــ **راښکل ، ځان پسې**:ـ (۱) ډېر زیات ستړے کېدل ـ د تګ نه پاتې کېدل ـ (۲) ډېر زیات کمزورے کېدل چې په قوت سره قدمونه نه شي اخستے ـ

ـــــ **سپکول**:ـ کنایه:تښتېدل ـ په منډه تښتېدل ـ تېښته کول ـ

ـــــ **غزول**:ـ (۱) ښپې (پښې) اوږدول ـ (ښپې خپل څادر سره غزول پکار دي) ـ (مقوله) (۲) مجازاً ـ مړ کېدل ـ

ـــــ **غونډول**:ـ (۱) د ښپې غزول ضد ـ ښپې (پښې) ماتول او ځان سر مختول ـ (۲) اخراجات وغېره کمول ـ

ـــــ **کلکول**:ـ (وـــــ ښپې ټنګول)

ـــــ **کول**:ـ (۱) ښپې (پښې) پیدا کول ـ د داسې بې ساه څیز ورکېدل یا غېبېدل چې پخپله چېرته نۀ شي تلے ـ(۲) پیسو ټکو د پاره خرڅ ځاے پیدا کول ـ

ـــــ **ګرېدل**:ـ (وـــــ ښپې خاربښتېدل)

ـــــ **لوڅے**:ـ (لُو+(ت)سے) (پ تر ـ صف ، مذ ، ج ـ څې) پښې ابل ـ چې په پښو کښې ئې پېزار نۀ وي ـ لڅې پښې ـ

ـــــ **ماتول ، په چا باندې**:ـ د تلو نه پاتې کول ـ عموماً چاته د نۀ تللو د وېنا په موقع وئیلې شي لکه که تۀ بیا هلته لاړې نو پښې (ښپې) به دې ماتې کړم ـ

ـــــ **نۀ لګېدل**:ـ (۱) په ځاے نۀ ټینګېدل ـ یو ځاے نه بل ځاے ته تلل ـ(۲) ښپې په زمکه نه کلکېدل ـ (۳) د اوبو د جور (ژور) والي علامت دے ـ چې د سره جورے (ژورې) وي چې د سړي سر د اوبو نه بهر وي ـ او پښې ئې تل ته رسي ـ

ـــــ **وهل د چا**:ـ (۱) ښپې (پښې) پرې کول ـ د ګرځېدو نه پاتې کول ـ (۲) د کوم کار د کولو جوګه نۀ پرېښودل ـ

**په ـــــ ارته تلل**:ـ د کوژدن نه پس په اول ځل د جینۍ د کور زنانه ؤ د هلک کور ته تلل ـ

**سر ـــــ کول**:ـ نخرې کول ـ انې بانې کول ـ

**لاس و ـــــ وهل**:ـ کوښښ کول ـ جدو جهد کول ـ

**ښپېته** :ـ (خ/ش+پې+تَ) (اس ـ مو ، ج ـ تې) پانه ـ فانه ـ یو اله ده چې مجرمان په جرم قائله کولو د پاره استعمالېږي ـ

**ښپېتول** :ـ (خ/ش+پې+تَ+ؤ+ل) (مص مت) مجرم ته پانه اچول ـ مجرم په خپل جرم د قائله کولو د پاره په پانه کول ـ

**ښپېتونه** :ـ(خ/ش+پې+تَ+ؤ+ن) (حمص) مجرم ته پانه اچونه ـ مجرم په خپل جرم قائله کونه ـ

**ښپېتوونکے** :ـ (خ/ش+پې+تَ+وُ+ن+کے) (فاع ـ مذ ، ج ـ کي) مجرم ته پانه اچوونکے ـ مجرم په خپل جرم قائله کوونکے ـ

**ښپېمان** :ـ (خ+پې+ما+ن) (صف ، مذ ، مو ـ ه) پښېمان ـ پشېمان ـ نادم ـ

**نیولے کېدل**:ـ (خ+پې+ما+نَ) (صف ـ مؤ) (وـــــ ښپېمان)

ـــــ **کول**:ـ پښېمانه کول ـ پشېمانه کول ـ نادم کول ـ

ـــــ **کېدل**:ـ پښېمانه کېدل ـ پشېمانه کېدل ـ نادم کېدل ـ افسوس کول ـ

**ښتره** :ـ (خ/ش+تَ+رَ) (اس ـ مو ، ج ـ رې) یو اله ده چې واورې وغېره پرې پاکه ولے شي ـ

**ښتي** :ـ (خ/ش+تَ+ري) (اس ـ مذ ، ج ـ ان) کهتري ـ د هندوانو په نسلي تقسیم کښې یو ذات ـ چې عموماً سپاهیان یا سوداګر پېشه ـ سوداګر ـ

**ښترے** :ـ (خ/شَ+ت+رے) (وـــــ ښتري)

**ښتکرے** :ـ (خ/شَ+ت+کَ+رَے) (وـــــ ښتګرے)

**ښتګرے** :ـ (خَ/شَ+ت+ګ+رَے) (اس ـ مذ ، ج ـ ي) د ښپې ګیتې ـ شنګرے ـ

**ښته** :ـ (خ/ش+تِ) (اس ـ مو ، ج ـ تې) ښپه ـ پښه ـ (خوګیانې ـ زرۀ پانک)

**ښځ** :ـ (خ/ش+(د)ز) د ښځه مخفف ـ نورو الفاظو سره د سابقې په طور لګولے شي ـ

ـــــ **کۍ**:ـ (کَ+ی) (اس ـ مو) د ښځه تصغیر ـ وړه ښځه ـ

ـــــ **لوبه**:ـ (لو+بَ) (اق ، پ تر ـ اس ـ مو ، ج ـ بې) ښځې ساتل ـ زنکه بازي کاسیرتوب ـ

**ښځرلے** :ـ (خَ/شَ+(د)زَ+ر+لَے) (اس ـ مذ ، ج ـ لي) د ترکاڼانو یو اوزار ـ څورلے څولے

**ښځکۍ** :ـ (خَ/شَ+(د)زَ+کَ+ی) (اس ـ مو) د ښځه تصغیر دے ـ وړه ښځه ـ

**ښځلے** :ـ (خ/ش+(د)ز+لَے) (اس ـ مذ ، ج ـ لي) شلخې ـ یو بوټے چې لوئې لوئې پاڼې لري ـ خوند ئې تریو وي ـ په باړو کښې ډېر کېږي ـ

**ښځمنه** :ـ (خ/ش+(د)ز+مَ+نَ) (اس ـ مو) ښځه ـ زنانه ـ د ښځې ـ

ع اوس فاسده زمانه شوه د ښځمنو! (خوشحال)

**ښځمني** :ـ (خ/شَ+(د)ز+مَ+ني) (اس ـ مو) د ښځو ټولې ـ طبقته نسوا ـ اناثیه ـ

**ښځنوکے** :ـ(خ/ش+(د)ز+نُو+کَے) (اس ـ مذ ، ج ـ کي) ښځولے ـ هغه سړے چې د ښځو په شان عادتونه لري ـ

ـــــ **کېدل**:ـ ښځولے کېدل ـ د ښځو په شان عادتونه نیول ـ

**ښځنۍ** :ـ (خ/ش+(د)زَ+نَ+ی) (صف ـ مو) د ښځو سره تعلق لرونکے ـ زنانه ؤ ته منسوب ـ

ـــــ **لیکه** :ـ(لي+کَ) د زنانه ؤ د طرف رشته داري ـ د ښځو د طرف والا ـ

**ښځنۍ** :ـ (خ/ش+(د)زَ+نَ+ی) (اق ـ صف) تانیث ـ د یو اسم (نوم) ښځه ـ (ماده) "بودل" ـ

**ښځنے** :ـ (خ/شَ+(د)زَ+نے) (اس ـ مذ ، ج ـ نې) (۱) ښځونکے ـ ښځولے ـ د ښځو په شان عادتونه لرونکے ـ(۲) بې همته ـ بې غېرته ـ

**ښځنے** :ـ (خ/ش+(د)زَ+نے) (صف ـ مذ ، مو ، نې) ښځو سره تعلق لرونکے ـ (څیز یا کار) زنانه ؤ سره متعلق ـ

**ښځو** :ـ د "ښځې" جمع اضافي یا مجروري شکل ـ

**د ـــــ**:ـ د ښځسر سره متعلق ـ لکه د ښځو کالج ـ

**د ـــــ کالج**:ـ هغه کالج چې پکښې یواځې زنانه سبق وئیلې شي ـ

**د ـــــ لیسه**:ـ د ښځو د سبق ځاے مدرسه ـ

**د ـــــ هاستېل یا هوستېل**:ـ هغه استوګن ځاے چې صرف زنانه ؤ د پاره مخصوص وي ـ زنانه هاستېل ـ

**د ـــــ هسپتال**:ـ هغه هسپتال چې پکښې صرف د زنانه ؤ علاج کېږي ـ د زنانه ؤ هسپتال ـ

**ښځولے** :ـ (خَ/شَ+(د)زو+لَے) (اس ـ مذ ، ج ـ لي)(۱) هغه سړے چې عادتونه ئې د ښځو په شانته وي ـ (۲) بې همته ـ بې غېرته ـ

**ښځونک** :ـ (خ/شَ+(د)زو+نَ+ک) (اس ـ مذ ، ج ـ ان) (۱) د ښځو په شان عادتونه لرونکے ـ ښځولے ـ(۲) بې همته ـ بې غېرته ـ

**ښځونکے** :ـ (خ/شَ+(د)زُو+نَ+کے) (اس ـ مذ ، ج ـ کي)(۱) د ښځو په شان عادتونه لرونکے ـ ښځو ـ (۲) بې غېرته ـ بې همته ـ (۳) هیجړا ـ لخنړ ـ

**ښځه** :ـ (خ/ش+(د)زَ) (اس ـ مو ، ج ـ ځې) (۱) د سړي ماده ـ (فا:زن) (۲) ماندینه ـ زوجه ـ ارتینه ـ (۳) ماده ـ (د نر مقابله کښې)

**ـــ اخیستل، د چا نه:**ـ سخته سزا ورکول ـ ډېر زیات نقصان یا تکلیف ور رسول

**ـــ پرېښودل:**ـ ښځې له طلاق ورکول ـ

**ـــ توب:**ـ (تو+ب) (اس ـ مذ) د ښځو خصوصیات ـ ښکه کېدنه ـ

**ـــ کـور سړے:**ـ د ښځو په شان خوي خصلت لرونکے ـ ښـځولے ـ نامرد ـ کم همته ـ بې زړهٔ سړے ـ

**ـــ کول:**ـ (۱) وادهٔ کول ـ ځان له ښځه راوستل ـ

زړهٔ دې ځـوانـه ښځه نهٔ کا که ئې غواړې

فـکر بـویـه چې له ښهٔ ځایه وي بارے (خوشحال)

(۲) په ښځه نیول ـ په نکاح کول ـ ښځه جوړول ـ

**ـــ کول، وربانديې:**ـ د یوې ښځې په موجودگۍ کښې بله ښځه کول ـ د یو ښځې دپاسه بله ښځه کول ـ

**ـــ کېدل د چا:**ـ ځان د کوم سړي په نکاح کښې راوستل ـ د کوم سړي ښځتوب اختیارول ـ

**ـــ مټیزه تلل د چانه:**ـ په څهٔ کار ډېر خفه کېدل ـ سخت ناگواره "بودل" ـ

**ـــ نوکے:**ـ (نو+کے) (پ تر ـ صف) هغه سړے چې عادتونه ئې د ښځو په شان وي ـ ښځولے ـ ښځونک ـ

**ـــ ولاړول:**ـ (۱) ښځه وادهٔ کول او رخصتول ـ (۲) (یا) خپله ښـځه (چنغلـه) راوادهٔ کول او خپل کورته راوستل ـ لکه خپله ښځه ځیني را ولاړه کړه ـ

**ښځې** :- (خ/ش+(د)زې) (۱) د "ښځه" جمع ده ـ (۲) د ښځه اضافي او مجروري وغېره شکل دے ـ

**د ـــ په وار کېدل:**ـ د ښځولې ـ بې زړهٔ او کم همته سړي په حقله وئیلے شي ـ

**د ـــ گېډه کېدل:**ـ ښځه د امېده کېدل ـ حامله کېدل ـ

**د ـــ مرید:**ـ زن مرید ـ د ښځې نه ویرېدونکے ـ د ښځې تابعدار ـ

**د ـــ مېړهٔ:**ـ (مې+ړ) کنځل دي ـ د ښځې یار ـ

**ښځیتوب** :- (خ/ش+(د)زې+تو+ب) (وـــــ ښځتوب)

**ښځینه** :- (خَ/شَ+(د) زې+نَ) (صف ـ مؤ) ښځو سره متعلق ـ

**ښچې** :- (خَ/شَ+چې) (حرف) د "ښهٔ چې" بدل شکل دے ـ ښهٔ شوه چې ـــ ښهٔ ده چې ـــ ښچې راغلې ـ

**ښخرلے** :- (خَ/شَ(ت)سَ+ر+لَے) (اس ـ مذ ، ج ـ لي) د ترکاڼانو یو اله ـ څورلے څولے

**ښـخیاکه** :- (خ/ش+(ت)+س+یـا+کَ) (اس ـ مـو ، ج ـ کے)مشـهـوره مرغـۍ ـ توتکۍ ـ کوچۍ ـ خخۍ ـ

**ښخ** :- (خَ/شَ+خ) (صف ، مـذ ، مـو ـ ه) (۱) په زمکه یا په څهٔ څیز کښې ننه ابستلے شوے ـ د فن شوے ـ مدفون ـ (۲) په خپل ځاے کلک ـ ټینگ ـ

**ـــ مړي رایستل /اباسل:**ـ مجازاً ـ هېرې په تېرې خبرې را په یادول ـ ختم شوې معامله یا شخړه بیا راتازه کول ـ مړ اور تازه کول ـ

**ـــ مړي مه راوباسه:**ـ مجازاً ـ هغه معامله یا شخړه کوم چې یو ځل ختمه کړې شوې ده ـ بیا مه راتازه کول ـ مړ اور مه تازه کوه ـ هېرې په تېرې خبرې مه رایادوه ـ

**ښـخند** :- (خَ/شَ+خ+ن+د) (اس ـ مـذ ، ج ـ ونـه) (۱) دلـدل ـ هغـه نرمـه او جـوره (ژوره) ختِه چې یو ځل په کښې ښوک ورپرېووځي نـو بیا تـــرې نـهٔ شي راوتے ـ (۲) داسې کار یا معامله چې سړے ترې ځان نهٔ شي رابنکلے ـ

**ښخندۍ** :- (خَ/شَ+خ+ن+دَ+ی) (ق ، اس ـ مـو) (۱) د هلکـانو د یوې لـوبې نـوم دے ـ (۲) ښخند ـ دلدل ـ

**ښخول** :- (خَ/شَ+ؤ+ل) (مص) (۱) د څهٔ څیز په زمکه یا په بل څهٔ څیز کښې دننه پټول ـ (۲) مړے په قبر کښې کښېښودل ـ دفن کول ـ

**ښخونک** :- (خ/ش+خ+و+ن+گ) (ق ـ حمص) (وــــــ ښخونه)

**ښخونه** :- (خ/شَ+خَ+ؤ+نَ) (حمص) (۱) د څهٔ څیز په زمکه یا په بل کوم څیز (لکه وابنهٔ وغېره) کښې دننه کښېښود نه او پټه ونه ـ (۲) د مړي په قبر کښې کښېښودنه ـ دفن کونه ـ

**ښخونکے** :- (خَ/شَ+خَ+وُو+ن+کے) (اس فا ـ ج ـ کي) د ښخولو کار کوونکے ـ دفن کوونکے ـ

**ښخونے** :- (خَ/شَ+و+نَے) (فاع ـ مذ ، ج نې)

**ښخېدل** :- (خَ/شَ+خې+د+ل) (مص لا) (۱) د څهٔ څیز ، په زمکه کښې یا بل کوم څیز (لکه وابنهٔ وغېره) کښې دننه کښېښودل کېدل ـ او پټېدل ـ (۲) د مړي په قبر کښې کښېښودل کېدل ـ دفن کېدل ـ (۳) ننبستل ـ راگېرېدل ـ هوښیاره مرغۍ (د) په دوو پښو ښخېږي ـ (متل)

**ښخېدنگ** :- (خ/شَ+خې+دَ+ن+گ) (ق ـ حمص) (وــــ ښخېدنه) ـ

**ښخېدنه** :- (خَ/شَ+خې+د+نَ) (حمص) (۱) د څهٔ څیز ، په زمکه یا بل کوم څیز (لکه وابنهٔ بوس وغېره) کښې دننه کښېښودل کېدنه ـ (۲) د مړي په قبر کښې کښېښودل کېدنه ـ دفن کېدنه ـ

**ښخېدونکے** :- (خ/ش+خې+دُو+ن+کَے) (اس فا ـ ج ـ کي) (۱) هغه کس یا څیز چې په زمکه یا بل کوم څیز (لکه وابنهٔ بوس وغېره) کښې دننه کښېښودے شي ـ دفن کېدونکے ـ (۲) مجازاً ـ مړے ـ

**ښخېدهٔ** :- (ش/ش+خې+د) (حمص) (وــــ ښخېدنه)

**ښرا** :- (خ/ش+را) (اس ـ مو ، ج ـ گانې) ښېره ـ بد دعا ـ

**ـــ کول:**ـ ښېره کول ـ بد دعا کول ـ

**ـــ کوونکے:**ـ (کَ+وُو+ن+کَے) (اس ـ فـا ـ ج ـ کـي) ښـېره کـوونکے ـ بـد دعـا کوونکے

**ښر ښنی** :- (خَ/شَ+ر+خ/ش+نَ+ی) (وــــ ښرکنی)

**ښرغلے** :- (خ/ش+ر+غَ+لَے) (اس ـ مذ ، ج ـ لي) د مېږو کور ـ مېږتون ـ یا دغه شان ځاے ـ

**ښرکنی** :- (خ/ش+ر+کَ+نَ+ی) (ق ، اس ـ مو) خرابه ـ ویرانه ـ هغه ځاے چې څوک پکښې نهٔ اوسي ـ د پخوانو استوگنو شاړے شوې کنډرې ـ

**ښرن** :- (خَ/ش+ر+ن) (صف ، مذ ، ج ـ ه) ښورې والا ـ ښوره داره ـ

**ښرنه** :- (خَ/شَ+ر+نَ) د "ښرن" تانیث ـ

**ـــ زمکه:**ـ ښورې والا زمکه ـ ښورنه زمکه ـ

**ښرونکے** :- (خ/ش+رُو+ن+کَے) (ق ، اس ـ مذ ، ج ـ کي) د یو بوټي نوم دے ـ چې ورې ورې پاڼې لري او ډانډې ئې سرهٔ وي ـ

**ښروه** :- (خَ/شَ+ر+وَ) (ق ، اس ـ مو ، ج ـ وې) خروه ـ د غرئیزې خرولو یو قسم دے ـ

**ښره** :- (خَ/شَ+رَ) (اس ـ مو ، ج ـ رې) ښوره ـ شوره ـ

**ـــ مغزه:**ـ (مَ+غ+ز) (ق ـ اس ـ مـو ، ج ـ زې) د ښـورې والا زمکـه ـ ښـورجنه زمکه ـ شورزار ـ

**ښسوره** :- (خَ/شَ+سو+رَ) (اس ـ مو ، ج ـ رې) تسکوره ـ کدالې ـ سبنورے ـ

**ښکار** :- (خ/ش+کا+ر) (اس ـ مـذ ، ج ـ ونـه) (۱) شکار ـ صید ـ مرغـۍ ، ځناور وغېره چې په لینده یا ټوپک وغېره ویشتلے شي ـ (۲) هغه کس چې څوک ئې د خپل څهٔ مقصد او فائدې د پاره استعمالولے شي یا چې په لټون کښې وي ـ سامې ـ

**ـــ ځاے:**ـ (د)زا+ئې) (اس ـ مذ ، ج ـ یونه) د ښکار کولو ځایونه ځنگل وغېره ـ ښکار غلے ـ شکار گاه ـ

**ـــ زن:**ـ (ز+ن)

**ـــ ځن:**ـ (د)+ز+ن) ښکارې ـ ښکار کوونکے ـ

**ـــ غلے:**ـ (غَ+لَے) (ق ـ اس ـ مذ ، ج ـ لي) د ښکار ځاے ـ شکار گاه ـ

ـــــ **کول:-** د مرغو، ځناورو وغېره په لينده ټوپک وغېره ويشتل او قابو کول قبډ کول-

ـــــ **کوونکے:-** (کَ+وُو+ن+کے) (اس فا ، ج-کي) ښکاري-هغه کس چې مرغۍ يا نور ځناور په لينده يا ټوپک وغېره ولي-

ـــــ **کېدل:-**(۱) د چا ښکاري په ټوپک يا لينده وغېره لګېدل او د هغه په قابو کښې راتلل-(۲) د چا په سازش وغېره کښې راګېرېدل-

ـــــ **کېدونکے:-** (کې+دُو+ن+کے) (اس فا ، ج-کي) (۱) د ښکاري په ټوپک، لينده وغېره لګېدونکے او د هغه په قبضه کښې راتلونکے-قبډ کېدونکے-(۲) د چا په سازش وغېره کښې ګېرېدونکے-

**ښکارند :-** (خ/ش+کا+ر+ن+د) (صف-مذ ، مو-ه) ښکاره-مشهور-ځرګند-

**ښکارندوئے :-** (خ/ش+کا+ر+ن+دُو+ئے) (صف-مذ ، مو-يه) ښکاره-مشهور-ځرګند-شهرت والا-

**ښکارند :-** (خ/ش+کا+ر+ن+دَ) (صف)(۱) ښکاره-ځرګنده-نمايانه-(۲) نمائينده-ښکاره کوونکے-

**ښکاروز :-** (خ/ش+کا+رُو+ز) (ق، اس-مذ ، ج-ان) دهقان-زميندار-زراعت کوونکے

ـــــ **توب:-** (تو+ب) (اس-مذ)دهقاني-زميداري-د کر کروندې کسب-

ـــــ **ښکاروزي:-** (خ/ش+کا+رُو+زي) (اس-مو) دهقاني-زمينداري-د کر کروندې کسب-

**ښکارول :-** (خ/ش+کا+رَ+ؤ+ل) (مص مت) ښکاره کول-ښودل-ښئيل-ځرګندول-ظاهرول-

راز ئې ولې ښکاره،ښۀ چې په دار شۀ
د منصور سزا تر دا وه لا بتره (خوشحال)

**ښکارول :-** (خ/ش+کا+رَ+ؤ+ل) (مص-مت) ښکارول-د مرغويا ځناورو وغېره په ټوپک لينده وغېره ويشتل-

ـــــ**زړونه:-**(۱) مجازاً زړۀ ونه په قبضه کښې راوستل-زړونه خپلول-(۲) خلق په ځان مئينول-

ـــــ **کبا په تور:-** کبان (مهيان) د جال په ذريعه نيول-

**ښکارونکے :-** (خ/ش+کا+رُو+ن+کَے) (اس-فا ، ج-کي) ښکار کوونکے-صيد کوونکے-ښکاري-صياد-

**ښکارونګ :-** (خ/ش+کا+رَ+وَ+ن+ګ) [ق-حمص] (و------ ښکارونه)

**ښکارونه :-** (خ/ش+کا+رَ+ؤ+نَ) (حمص) ښکار کونه-ځرګندونه-ظاهرونه-

**ښکاروونکے :-** (خ/ش+کا+رَ+وُ+ن+کے)(فاع-مذ ، ج-کي) ښکار کوونکے-ځرګندوونکے-

**ښکاره :-** (خ/ش+کا+رَ) (صف) ځرګند-ظاهر-واضح-

ـــــ **ثبوت:-** (ـــــ ث+بو+ت) (اس-مذ ، ج-ونه) داسې ثبوت چې ځرګند وي چې ترديد ئې نۀ شي کېدے-واضح دليل-

ـــــ **خبره:-** (ـــــ خَ+ب+رَ) (اس-مو ،ج-رې) ځرګنده خبره-معلومه خبره يا معامله

ـــــ **درله:-** (ـــــ دَ+ر+ل) (په جهر-په اوچت اواز-ښکاره درله د لوستو په ورمه دوه رکعته فرض نمانځۀ کښې ------(خبرالبيان)

ـــــ **دښمن:-** (دُ+ش+م+ن) (اس-مذ ، ج-ان) هغه دښمن چې مخالفت ئې ځرګندوي-(په مقابله کښې د پټ دښمن)-

ـــــ **دښمني:-** (دُ+ش+م+ني) (اس-مو) (۱) داسې مخالفت چې هغه په ځرګنده کولے شي-د معلوم دښمن مخالفت-(۲) داسې کار چې بل ته پرې نقصان رسي-

ـــــ **دليل:-**(دَ+ل+ي+ل) واضح حجت-داسې دليل چې ځرګندوي-ځرګند ثبوت

ـــــ **ښکاره وئيل:-**صفا صفا وئيل-په ډاګه وئيل-

ښکاره ښکاره وئيل کړم
د رازونو سارق نۀ يم (خوشحال)

ـــــ **غلطي:-** (غَ+لَ+طي) (اس-مو ، ج-ئ) هغه غلطي چې ځرګنده وي يعنې چې ثبوت نۀ غواړي-ځرګنده غلطي يا خطائي-

ـــــ **کول:-** (و------ ښکارول)

**په ـــــ وئيل:-** په ځرګنده وئيل-په ډانګ پيپلي وئيل-

**ځان ـــــ کول:-**(۱) خپل ځان ځرګندول-خپل ځان خلقو ته ظاهرول-خپل اهيلت، قابليت وغېره ځرګندول-(۲) خود نمائي کول-د ځان ښوونه کول-ځان ښئيل-

**ښکاري :-** (خ/ش+کا+ري) (اس-مذ ، ج-ان)(۱) ښکار کوونکے-مرغۍ يا ځناور وغېره په ټوپک يا لينده وغېره ويشتونکے-صياد-(۲) د خپل څۀ غرض يا مقصد د پاره د موزون کس لټون کوونکے يا داسې موزون کس راګېروونکے-

ـــــ **الوتکه:-** (ـــــ اَ+ل+وَ+ت+کَ+ه) (اس-مو ، ج-کے) ښکار کوونکے جهاز-هغه جهاز چې د ښکار د پاره پکارولے شي-

ـــــ **ټوپک:-** (ـــــ ټو+پَ+ک) (اس-مذ ، ج-ونه) هغه ټوپک چې ښکار پرې کولے شي-چرئيز ټوپک-(دا ګولي دار هم وي خو عموماً ترې چرئيز ټوپک مراد وي)-

ـــــ **سپے:-**(ـــــ س+پے) (اس-مذ ، ج-سپي) هغه خاص قسم سپے (لکه تازي) چې د ښکار کولو د پاره تربيه شوے وي-

ښکاري سپے چې د نخچير په ښکار کښې ښۀ شي
له خوښې ئې په مخ مړي روئمال (خوشحال)

ـــــ **مارغان:-** (اس-ج) هغه مرغۍ يا مارغان د کومو چې ښکار کولے شي يعنې هغه مرغان چې خوراک ئې حلال وي-

**ښکاربدل :-** (خ/ش+کا+ري+د+ل) (مص لا)(۱) ښکاره کېدل-ځرګندېدل-ظاهرېدل-(۲) په ظاهر معلومېدل-(لکه داسې ښکاري چې څۀ افت را روان دے-(۳) ليدلے کېدل-په نظر راتلل-لکه د اختر مياشت ښکاره شوه-(۴) کنايه پېښنه کول-راتلل لکه فلانئ! څۀ چل دے ښکاري نه-(۵) د بدن پټ ځاے په نظر راتلل-لکه فلانے ځاے دې ښکاري ځان پټ کړه-

ـــــ **مياشت:-** (م+يا+ن+ش+ت) نوې مياشت په نظر کښې راتلل-لکه د اختر مياشت ښکاره نۀ شوه-

**ښکاربدل :-** (خ/ش+کا+ري+د+ل) (و------ ښکاربدل)

**ښکاربدنګ :-** (خ/ش+کا+ري+دَ+ن+ګ) (ق-حمص) (و------ ښکاربدنه)

**ښکاربدنه :-**(خ/ش+کا+ري+د+نَ) (حمص) ښکاره کېدنه-ځرګندېدنه-

**ښکاربدونکے :-** (خ/ش+کا+ري+دُو+ن+کے) (اس فا-ج-کي) (۱) ښکاره کېدونکے-ځرګندېدونکے-ظاهرېدونکے-(۲) په نظر راتلونکے-ليدلے کېدونکے-

**ښکالو :-** (خ/ش+کا+لو) (اس-مو ، ج-ګانې) (۱) د پښو (د قدم اخستو) اواز-(۲) پس پسارے-د پس پس کولو اواز-(۳) مطلق اواز-

په جنت چې رائشينه دروازې ووهينه
چې ښکالو د دروازو شي ورته حورې په وتوشي
(اکبر قلمي ، زړۀ پانګه)

(۴) علامه-علامت-اثر-

**ښکالو :-** (خ/ش+کا+ل+وَ) (اس-مو ، ج-وے) ګرانه-مشکل-دشواري-

**ښکالوه :-** (خ/ش+کا+ل+و) (اس-مو ، ج-وے) بحث-تکرار-ګفتګو-ډېرې زياتې خبرې-

ـــــ **کول:-** بحث تکرار کول-ډېرې خبرې کول-کړتې کول-

**ښکانځل :-** (ش+کا+ن+د)+ز+ل) (مص) ښکنځل-کنځل-زېړې کول-

**ښکانځنه** : - (ش+کا+ن+ځ+ن+َ) (حمص)کنځل کوونه - زیَرې کونه - دشنام ورکوونه -

**ښکانځۀ** : - (ش+کا+ن+ځ+ۀ)(اس - مو ، ج - ځي) کنځل - زیاړه - دشنام -

**ــــ کول**:- کنځلې کول - کنځل - زیَرې کول -

**ــــ کېدل**:- کنځلې کېدل - زیَرې کېدل -

په دغه نمانځه نمانځي نۀ شي ښکانځه شي

چې دې زړۀ وي په رباب مخ په محراب (حمید)

**ښکتني** : - (خ/ش+کَ+تَ+نَ+ی) (اس مو) د ښکتني تانیث -

**ښکتني** : - (خ/ش+کَ+تَ+نی) (اس - مذ ، ج - ي) لاندینی - کوزنی - د ښکته طرف - ښکته طرف وال -

**ښکته** : - (خ/ش+کَ+تَ) (اس ظر) (۱) لاندې (ظرف) - کوز - کښته - (۲) پر ماتې خوړلی - مغلوب - (۳) د پښتونخواه (د اټک د دسیند) نه نم (نور) خاتۀ طرف ته علاقې - پنجاب او (زوړ) شمالي هندوستان -

**ــــ پورته**:- (پو+ر+تَ) په کوز طرف او په لوړ طرف -

**ــــ پورته کتل، چاته**:- د سر نه تر پښو پورې کتل - د ټول وجود جائزه اخستل - لاندې باندې کتل -

**ــــ پورته کېدل**:- په کوز او پورته طرف حرکت کول - کنایه ئې توجه نمونځ کول -

**ــــ تلل**:- (۱) لاندې تلل - د چا د ویرې هغه له جواب نۀ ورکول - (۲) زوړ هندوستان ته تلل -

**ــــ کتل**:- (۱) کوز طرف ته کتل - لاندې کتل - (۲) زمکې ته کتل - مجازاً عاجزي کول - عاجزي ښکاره کول -

**ــــ کول**:- (مص تر) کوز کول - کوز طرف کول - لاندې راوستل - ټیټول -

**ــــ کول، (ور، در، راسره)**:- کوزول - ځوړندول - لکه بوقه کوهي ته ور ښکته کړه یا دا ځنګه را ښکته کړه -

**ــــ کېدل**:- کوز طرف ته کېدل - ټیټېدل -

**ــــ ملک**:- (م+ل+ک) (فپ تر - اس - مذ ، ونه) د پښتونخواه نه نمر خاتۀ طرف ته ملک - پنجاب او زوړ قطبي هندوستان -

نۀ مې ښکته ملک لیدلی دے نۀ پورته

خبر نۀ یم په یمن او په ایسار رحمان

**ــــ زوړوالی**:- (ــــوا+لَی) (اس - مذ) کوزوالے - د ښکته طرف حالت -

**ستر ګې ــــ کول**:- (۱) شرمنده کېدل - نادمه کېدل - (۲) شرمول - شرم ورپورې کول -

**سر ــــ کول**:- (۱) شرمنده کېدل - نادم کېدل - (۲) منل - تسلیمول - (۳) شرمنده کول - نادمه کول - شکست ورکول -

**مخ په ــــ**:- (۱) زوړ طرف ته - لاندې طرف ته - (۲) تنزل کول - زوال راتلل -

**ښکتے** : - (خ/ش+ک+تَے) (اق ، اس - مذ ، ج - تي) پستي - کښتے -

**ښکر** : - (خ/ش+ک+ر) (اس - مذ ، ج - ونه/ ان) "ښکر" په طور جمع هم استعمالېږي (۱) هغه سخت څیز کوم چې د ځینو ځناورو په تندي راخېژي او داسې ځناور پرې خپله دفاع کوي - (ه: سنګ یا سینګ) - خکر - شکر - (۲) د خکر یا شکر په شان راوتے څیز - (۳) د حیواناتو (خصوصاً د هوسو) د تاو راتاو ښکر نه جوړ شوے غرېدونکي اله - عموماً فقیران ئې غږوي یا مندرونو وغېره کښې غږولے شي - (۴) صور - د اسرافیل علیه السلام ښکر چې د قیامت په ورځ به غږولے شي - (۵) په سر کښې د فرضي ښکر ځاے -

**ــــ اړمول**:- په جنګ راتلل - په مقابله کښېوتل -

**ــــ په ښکر**:- (خ/ش+ک+ر) د پهلوانانو په کشتۍ کښې تندے په تندي جګښېدلے - سخته مقابله کښې -

**ــــ جنګ ته ګرېدل**:- جنګ ته ئې ګوابن کېږي - زړۀ ئې جنګ ته شوے دے - د جنګ د پاره څۀ بهانه لټوي -

**ــــ غږول**:- د ښکر نه جوړ شوے ساز غږول - (د فقیرانو انداز دے) -

**ــــ کول**:- ښکر پېدا کېدل - لوئېدل - د جنګ جوګه کېدل - کنایتاً زلمے کېدل - تکړه کېدل - طاقت موندل -

**ــــ لګول**:- (و ــــ ښکر اړمول)

**ــــ ماتول، د چا**:- د چا د جنګ کولو یا د مقابلې کولو وسیله ورکول - کمزورے کول - بې وسه کول - (د ځناور چې ښکر مات شي نو بیا جنګ او مقابله نۀ شي کولے) -

**ــــ ور**:- (ــــ ؤ+ر) (صف مذ ، مو - ه) (۱) ښکر لرونکے - ښکرونو والا - (۲) هغه کس چې بل ته نقصان رسولے شي - (۳) د جنګ او مقابلې زور لرونکے - طاقتور زور زور -

**ــــ وهل**:- برابرې کول چا سره - همسري کول - مقابله کول -

**په ــــ جنګېدل**:- د ښکر په زور جنګ کول - ښکر سره جنګ کول -

**په ــــ کښېښودل** ، پټکے ، ټوپۍ:- پټکے کوږ کښېښودل - خپله زوروري ښودل - خپل زور نمائش کول - فخر اظهار کول -

**په ــــ وهل**:- په ښکر ګذار ورکول - په ښکر زخمي کول -

**د کم عقلو ــــ خونه وي**:- کم عقل سړے څۀ خاص علامت خو نۀ لري چې په علامو پېژندے شي - بلکې د کم سړي عمل د هغه د کم عقلتیا ثبوت وي -

**سر او ــــ نه معلومېدل**:- سر او کنه نۀ معلومېدل - سر او پښه نۀ معلومېدل - لکه ددې کار سر او ښکر نۀ دے معلوم - (ا+ق)

**ښکره** : - (خ/ش+ک+رَ) د "ښکر" مجروري حالت -

**ــــ بې**:- بې سره - به تهذیبه - بې سړي توبه - دا هلک بې سره او بې ښکره دے - (ا+ق)

**ښکروره** : - (خ/ش+ک+رَ+ؤ+رَ) [ق - اس - مؤ] یو قسم مرغۍ -

**ــــ وزه**:- (ــــ وُ+زَ) هغه وزه (بیزه - چیلۍ) چې ــــ

**ښکل** : - (خ/ش+ک+ل) (مص مت) وښکل - اباسل - ویستل - باهر کول - خارج کول

(ــــ) ــــ:- کشه ول - ځان ته نژدې کول - (فا کشیدن) -

**زیار ــــ**:- (ز+یا+ر) محنت کول - تکلیف برداشت کول - زیر کښل -

**ښکل ۲** : - (خ/ش+ک+ل) (مص مت) لیکل - نوشته کول - کښل - (په دې معنٰی کښې "کښل" املاء درسته ده) -

**ــــ کول**:- لیکل کول - لیکل - تحریر کول - کښل -

**ښکل** : - (خ/ش+کُ+ل) (اس - مذ) بوسه - چپه -

**ــــ کول**:- بوسه ورکول - چومل - چپې کول - ښکلول -

پښې د تاد دود سپیو سعید ښکل کړې

و سلطان ته ئې کاتۀ د سترګو تنګ دے (سعید)

**ــــ کېدل**:- بوسه اخستے کېدل - چپې کېدل -

**ښکلا** : - (خ/ش+کُ+لا) (اس - مو ، ج - ګانې) (۱) ښائست - حسن - ښائسته والے - (۲) اراستګي - زیبائش -

**ــــ پېژندنه**:- (ــــ پې+ژَ+ن+د+نَ) ــــــــــــــــ

**ــــ پېجندنه**:- (ــــ پې+ج+ن+د+نَ) حسن شناسي - ښائست پېژندنه -

**ــــ کار**:- (ــــ کا+ر) ښکلے کوونکے - ښکلا ورکوونکے - اراسته کوونکے -

**ــــ کاري**:- (اس) د ښکلے کولو کار - ارائش - زیبائش -

**ــــ موندل**:- (۱) ښائسته موندل - ښکلے کېدل - (۲) اراسته کېدل - زیبائش موندل -

**ـــــ ورکول:**- (۱) ښکلې کول - ښائسته کول - (۲) اراسته کول - زېبائش موندل -

**ښکلل** : - (خ/ش+ک+ل+ل) (مص) ښکلا ورکول - اراسته کول - زېبائش ورکول - ښائسته کول -

**ښکلو** : - (خ/ش+ک+لو) (اس - مو) ښکر لرونکې - د وزو (ېزو) هغه قسم چې ښکر لري - (د کلي وزو (ېزو) په مقابله کښې) -

**ښکرونه** : - (خ/ش+ک+رُو+نو) د "ښکرونه" اضافي او مجروري وغېره شکل -

**په ـــــ اخستل**:- د ښکرو ځناور ځوک په خپلو ښکرونو اوچتول -

**ښکرونه** : - (خ/ش+ک+رُو+نَ) (اس - ج) د "ښکر" جمع دے -

**ـــــ کول**:- ځوانېدل - مجازاً هوښيارېدل - لکه تهٔ به کله ښکرونه کوې -

**ـــــ ماتول**:- (و ـــــ ښکر ماتول)

**ښکرۍ [شکرۍ]** : - (ش/+کَ+رَ+ی) (اس - مو) د شکرې تصغير - وړوکے شکرے - وړه ټوکرۍ (خصوصاً هغه چې د مېزرونه جوړه شوې وي) - (خکرے هېڅوک نهٔ وائي) -

**ښکري** : - (خ/ش+ک+ري) (اس - مو) ښکرواله - ښکرو والا "بودنه" -

**ښکرے** : - (ش+کَ+رے) (اس - مذ ، ج - ي) د مېـزرو نـه جـوړ شـوے شکور چې ډوډۍ پکښې ايښودله شي - (صحيح املا "شکرے" خکرے هېڅوک نهٔ وائي)

**ښکرے** : - (خ/ش+ک+رَے) (ق - اس - مذ ، ج - ي) (۱) پلے (د دانو) د مشـنګو په شان د بوټوبلے - کرېس - (۲) څونکه - ځيړي -

**ښکرے** : - (خ/ش+کُ+رَے) (اس - مذ (۱) - ونه (۲) ي) (۱) برغو - د ښکر نـه جوړ شوے هغه ساز چې ملنګان ئې غږوي يا په ځينو عبادت ځايونو کښې غږولے شي - (۲) د نايانو ښکر -

**ښکريز** : - (خ/ش+ک+ري+ز) (صف - مذ) (۱) ښکر يـا ښکرونو والا - (۲) ښکر سره متعلق - د ښکر نه جوړ شوے - نخښه - داغ - نشان -

دوزخيان راغلهٔ له ناره　　　نخښنه دوي راوړه بېکاره

ځانګ به راکاږي په باندې　　　هغه کښل به لري کاندې

(اکبر - زره پانګه)

**ښکلول** : - (خ/ش+کُ+لَ+وُ+ل) (مص مت) بوسه ورکول - چومل - چچي کول -

**ښکلونګ** : -(خ/ش+ک+لَ+وَ+ن+ګ) [ق - حمص] (و ـــــ ښکلونه)

**ښکلونه** : - (خ/ش+کُ+لَ+وُ+نَ) (حمص) بوسه ورکوونه - چومنه - چچي کوونه -

**ښکلونکے** : - (خ/ش+کُ+لَ+وُو+ن+کَے) (اس فـا - ج - کـي) بوسـه اخسـتونکے - چُومونکے - چچي کوونکے -

**ښکلے** : - (خ/ش+کُ+لے) (صف - مذ ، مو - لَے) ښائسته - حسين - حسن والا - (د اسم په طور هم استعمالېږي لکه اے ښکليه (راځه)

**ـــــ توب**:- (تو+ب) (و ـــــ ښکلا ـــــــــــ)

**ـــــ ښکارېدل**:- ښائسته ښکارېدل - زيبا ښکارېدل -

**ـــــ کول**:- ښکلا ورکول - ښائسته کول -

**ښکلے** : - (خ/ش+ک+لَے) (اس - مف - ج - لي) ليکلے - ليکلے شوے - په ليک کښې راغلے - تحرير شوے -

**ښکلے** : - (خ/ش+ک+لَے) (اس - مف ، ج - لي) وښکلے - اُباسلے - ويستلے - خارج کړے شوے - (عموماً واو يا الف واو سره ليکلے شي) -

**ښکلېدل** : - (خ/ش+کُ+لې+د+ل) (مص) ښکل کېدل - بوسه اخستے کېدل - چچي کېدل -

**ښکلېدنګ** : - (خ/ش+کُ+لې+دَ+ن+ګ) [ق - حمص] (و ـــــ ښکلېدنه)

**ښکلېدنه** : -(خ/ش+کُ+لې+د+نَ) (حمص) بوسه اخستے کېدنه - چچي کېدنه -

**ښکلېدونکے** : - (خ/ش+کُ+لې+دُو+ن+کَے) (اس - مف ، ج - کـي) هغـه کس يـا ځيز چې بوسه يا بوسې ئې اخستے شي لکه حجره اسود په دنيا کښې ډېر ښکلېدونکے کاڼے دے -

**ښکلېدۀ** : - (خ/ش+کُ+لې+د) [حمص] (و ـــــ ښکلېدنه)

**ښکنځا** : - (ش+کَ+ن+(د)ز۱) (اس - مو ، ج - ګان ښکنځنه - زيارې - کنځل -

**ـــــ کول**:- کنځل کول - ښکنځل کول - زيارې کول -

**په ـــــ زيړل**:- کنځل کول - ښکنځل - کنځل - زيړل -

همېشه زما دعـا پـه غوږو اوري

يوه ورځ دې په ښکنځا نه يم زيړلے　　　(خوشحال)

**ښکنځل** : - (ش/+کَ+ن+(د)ن+ز+ل) (اس - مـذ) کنځـل - زيـاره - زيـره - کنـزل - دشنام -

**ـــــ کول**:- کنځل کول - زيَرې کول - دشنام ورکول -

واړه مست شو ، بـد وئيل کا

و سـړيو تـه ښکنځل کا　　　(خوشحال)

**ـــــ مار**:- (ـــــ ما+ر) (صف - مذ ، مو - ه) ډېر کنځل کوونکے - د کنځل کولو خوئي لرونکے - عادتًا زېږې کوونکے - بدزبانه - بدجبے - بد ژبے -

**ښکنځل** : - (ش+کَ+ن+(د)+ز+ل) (مص) کنځل کوونکے - زيـاړل - زېږې کول - دشنام ورکول -

**ښکنځلي** : -(خ/ش+کَ+ن+(د)ز+لَے) (اس - مف ، ج - لي) چاته چې کنځل شوي وي - زيَرې شوې - زيَرېدلے -

**ـــــ کېدل**:- ډېر کنځل خوړل - ډېر کنځل موندل - زيَرلے کېدل -

**ښکنځنه** : - (خ/ش+کَ+ن+(د)ز+نَ) (حمص) کنځل کوونه - زيَره يا زيَرې کوونه دشنام ورکوونه -

**ښکنځونکے** : - (خ/ش+کَ+ن+(د)+زُو+ن+کَے) (اس فا - ج - کي) کنځل کوونکے - زيَرې کوونکے -

**ښکنه** : - (خ/ش+ک+نَ) (اس - مؤ - ج : ني) هغه ښوروا کُومـه چې د اوبـو غـوړو ، پيازو ، مالګې او مسالې نه جوړه شوې وي -

**ښکول** : - (خ/ش+ک+ؤ+ل) (مص مت) شوکول - لُوټل - لکه "خلق ئې په زامنو ښکلول" -

**ښکولول** : - (خ/ش+کو+لَ+ؤ+ل) (مص مت) (و ـــــ ښکُلول)

**ښکولے** : - (خ/ش+کو+لَے) (صف - مذ) - (و ـــــ ښکُلے)

**ښکوم** : - (خ/ش+کُو+م) (اس - مذ ، ج - ونه) نصيحت - پند -

**ښکومے** : - (خ/ش+کُو+مے) (اس صف) خېرخواه - خېر غوښتونکے -

**ښکوي** : - (خ/ش+کُو+ي) (ق ، اس - مذ) ليک - تحرير - ليکلے شوے -

**ښکے** : - (خ/ش+کے) (صف - مذ) ښکته ، کښته - لاندې - زير -

**ـــــ کېدل، باران**:- نازل کېدل - ښکته راتلل - مجازاً راورېدل -

چې ددې ابر باران درباندې ښکے شي

بې ثمره سر دې ځان ثمر ته ساز کـړي　　　(حميد)

**ـــــ کېدل ، ړلی**:- ښکته - راتلل - راپرېوتل - ړلی کېدل - د ړلی دانې راورېدل -

زريـچې د عقل ماتې کند کړ کا

چې پرې ښکے کا د تقدير اسمان ړلی　　　(حسين)

**ښکېل** : - (خ/ش+کې+ل) (صف - مذ ، مو - ه) پائې بند - د پښو نه ترلے شوے - شکېل -

**ـــــ کول**:- د پښو ن ترل ، پائے بند کول - ښکېلول -

تـور اثـري سترګو د ايل اهـو د چـين کړ

ښکېل د عراقيان کړه د هر موئې په سن لا　　　(حافظ)

**ښکېلول** : - (خ/ش+کې+لَ+ؤ+ل) (مـص) (۱) د پښـو نـه تـړل - پـائے بنـد کـول - شـکېلول - (دځنـاور) - (۲) مجبـورول - راګېـرول - (۳) د چا د مجبـورۍ نـه

فائده اخيستل - (۴) د چا په کار کښې خنډ اچول - (ظفر)

**ښکېلونګ :** - (خ/ش+کې+لَ+ؤ+ن+ګ) [ق - حمص] (و------ ښکېلونه)

**ښکېلونه :** -(خ/ش+کې+لَ+ؤ+نَ (حمص)(۱) د پښو نه تړنه - يا بسته کوونه - شکېلونه (د څناور) -(۲) راګېرونه - مجبوره کوونه - (۳) د چا د مجبورۍ نه فائده اخستنه - (۴) د چا په کار کښې خنډ اچونه -

**ښکېلوونکے :** - (خ/ش+کې+لَ+وُو+ن+کے) (اس - فا - ج - کي) (۱) د پښو نه تړونکے يا بسته کوونکے - شکېلوونکے - (د څناور) (۲) راګېروونکے - مجبوروونکے (۳) د چا د مجبورۍ نه فائده اخستونکے - (۴) د چا په کار کښې خنډ اچوونکے -

**ښکېلېدل :** - (خ/ش+کې+لې+د+ل) (مص لا) (۱) (د څناور) د پښو نه تړلے کېدل - زولانے اچولے کېدل - پا ے بند کېدل - (۲) راګېرېدل - ښښتل - (۳) مجبوره کېدل - د مجبورۍ له کبله اړالي کېدل -

**ښکېلېدنګ :** - (خ/ش+کې+لې+د+ن+ګ) (ق - حمص)(و---------- ښکېلېدنه)

**ښکېلېدنه :** - (خ/ش+کې+لې+د+نَ (حمص)(۱) د پښو نه تړلے کېدنه - په زولانه کېدل - (۲) مجبوره کېدنه - راګېرېدنه - ښښتنه -

**ښکېلېدونکے :** - (خ/ش+کې+لې+دُو+ن+کے) (اس فا - مذ ، ج - کي) (۱) د پښو نه تړلے کېدونکے - (څناور) پا ے بند کېدونکے - په زولانه کېدونکے - (۲) راګېرېدونکے - مجبورېدونکے -

**ښکېناستل :** - (خ/ش+کې+نا+س+ت+ل) [مص] - کښېناستل -

**ښکېنی :** - (خ/ش+کې+نَ+ی) (صف - مؤ) ښکتنی - کوزنی - د کوزې علاقې سره تعلق لرونکے -

**ښکېنے :** - (خ/ش+کې+نَے) (اس - مذ ، ج - نې) لاندينی - کوزنے - د کوزې علاقې سره تعلق لرونکے - ښکتنے -

**ـــــ وژلے :-** د باسليق رګ (BASILICA) د مټ مېنځنې شريان -

**ښکېوتل :** -(خ/ش+کې+ؤ+ت+ل) [مص] کښېوتل -

**ښکيه :** - (خ/ش+کے+ي)(صف) ښکته - لاندې - کوز - (د "بر" ضد)

**ښګلونے :** - (خ/ش+ګ+لُو+نَے) (ق - اس - مذ) يو قسم کانړے دے -

**ښلونه :** - (خ/ش+لو+نَ) (اس - مو - ج - نې) دانه -

**ښل :** - (خَ/شَ+ل) (اس - مذ ، ج - ونه) اندرپايه - پوړۍ - پارسنګ -

**ښمخ :** - (خ/ش+م+ش) (اس - مذ ، ج - ونه) سمڅ - په غر کښې قدرتي غار - سمسته - ګاره -

**ښمر :** - (خ/ش+م+ر) (اس - مذ ، ج - ونه) (کاکړ) - نفع - فائده - شمر - لکه بې ښې - بې

**بې ـــ سړے :-** هغه سړے چې چاته ئې خير نه رسي -

**بې ښې بې ـــ :-** بې ښې بې توښې - بې شمره - بې ښمرې - بې فائدې -

**ښنځرے :** - (خ/ش+ن+(د)ز+رَے) (اس - مذ ، ج - ري) تنځرے - مشهور مارغه - دراج -

**ښنځه :** - (خ/ش+ن+(د)زَ) (اس - مو ، ج - ځې) يو قسم غټه ننکۍ - دنبل - شنجه -

**ـــ ختل :-** يو قسم غټه ننکۍ ختل - دنبل ختل - (دا ننکۍ عموماً په ترخ يا ښانکه کښې خيجي - (خيژي)

**ښندل :** - (خ/ش+ن+د+ل) (مص مت) شندل - شيندل - قربانول - څارول -

چې د يار په ديدن سر و مال ښيندمه
خـلقه واورئ زه هغه عبدالرحمان يم (رحمان بابا)

**ښندل۲ :** - (خ/ش+ن+د+ل) (مص مت) (۱) نوستل - خورول - (۲) ورکول - لکه دې تپولو خبرو هيڅ فائده ونه ښيندله -

**ښندلے :** - (خ/ش+ن+د+لَے) (مف - مذ - ج - لي) شندلے - قربان کړے - څار کړے -

**ښندنګ :** - (خ/ش+ن+دَ+ن+ګ) [اق - حمص] (و---------- ښندنه)

**ښندنه :** - (خ/ش+ن+د+نَ) (حمص) قربانول - څارونه -

**ښندنه :** - (خ/ش+ن+د+نَ) (حمص) خرڅ کوونه - لګوونه - خورونه - پاشنه -

**ښندونکے :** -(/ش+ن+دُو+ن+کے) (اس - فا - ج - کي) قربانوونکے - څاروونکے - نثار کوونکے -

**ښندونکے :** - (خ/ش+ن+دُو+ن+کے) (اس فا - ج - کي) خرڅ کوونکے - لګوونکے - خوروونکے - پاشونکے -

**ښندونکے :** -(خ/ش+ن+دُو+نَے) [فاع - مذ] (و--------- ښندونکے

**ښنده :** - (خ/ش+ن+دَ) (اس - مو ، ج - دے) (۱) په څۀ څيز کښې زياتے او مبالغه - شنده - (۲) مصيبت - تکليف -

**ښندۍ :** - (خ/ش+ن+دِ+ی) (اس - مو) د بکيانې پچے - د بکيانې تخم يا مېوه - شنډۍ

**ښنزه :** - (خ/ش+ن+زَ) [اس - مؤ] (و--------- ښنځه)

**ښنغلے :** - (خ/ش+ن+غ+لَے) (اس - مذ ج - لي) د ښانګو مېنځ - د پتون ويخ -

**ښنک :** - (خ/ش+نَ+ک) (اس - مذ ، ج - ونه) د لرګي يا خاورين لوپه سنئ - پرات - ښانک - ښنک يا ترے - د يوبرتن نامه

**ښنکار :** - (خ/ش+ن+کا+ر) (اس - مذ ، ج - ان) مشهور ښکاري مارغۀ - شنقار -

**ښنکے :** - (خ/ش+ن+کَے) (اس - مذ ، ج - کي) د ښنک تصغير - ورو کے ښانک - ښانک ګوټے - پتروټے -

**ښنګ :** - (خ/ش+ن+ګ)(اس - مذ ، ج - ونه) د يوې ونې نوم - د شنګ ونه - ښونښ -

**ښنګ :** - (خَ/شَ+ن+ګ) (صف - مذ ، مو - ه) (۱) يخه شوې يا چکه شوې وينه - (۲) زمکه چې د پاسه پرې واوره کنګل شوې وي -

**ښنګان :** - (خَ/شَ+ن+ګـا+ن) [اس - جمع] يو قسم بوټے - وابۀ - د څاروو خوراک -

**ښنګر :** - (خ/ش+ن+ګـ+ر) (اس - مذ) د ښېښې خاربښت کول او ګرېدل - ښانګر - څانګه - (بعضې خلق دا يو پال ګڼي او د کوم مېلمه د راتلو علامت ګڼي) -

**ښنګروبن :** - (خَ/شَ+ن+ګ+رو+خ/ش)(اس - مذ ، ج - ونه) د څمڅۍ پېښ بند -

**ښنګرے :** - (خ/ش+ن+ګ+رَے) (اس - مذ ، ج - ي) (۱) يو قسم بوټے چې جرړې ئې خوړې شي - (۲) د جولاګانو د تنستې يوه اله -

**ښنګرے :** - (خ/ش+ن+ګ+رَے) (اس - مذ ، ج - ي) (۱) د غواؤ او د ګډو سوم يا نوم - (۲) د بنيادم د پښو ګيتۍ - شنګرے -

**ښنګسرے :** - (خ/ش+ن+ګ+س+رَے) (اس - مذ ، ج - ي) د ښانګو سره - (د پتون ويخ) - ښننغلے -

**ښنګښر :** - (خ/ش+ن+ګ+خَ/شَ+ر) (ق ، اس - مذ) د ښانګو مېنځ - (د پتون ويخ) کوناټے -

**ـــــ ختل يا وتل :-** ټوټې ختل - کوناټي سره ګُډوالے پيدا کېدل -

**ښنګل :** - (خ/ش+ن+ګَ+ل) (اس - مذ) (۱) شوره - (۲) سره - خاشوره -

**ښنګلی :** - (خَ/شَ+ن+ګ+لَ+ی) (صف - مو) سخته زمکه - چې اوبۀ نۀ راکاږي

**ـــــ مالګه :-** (ما+ل+ګَ) (اس - مو ، ج - کے) هغه مالګه (نمک) چې د شورې نه جوړولے شي

**ښنګوري :** -(خ/ش+ن+ګُو+ر+ئ) (اس - مو) متيزه ښځه - هغه ښځه چې د مور پلار د رضا نه بغېر چا پسې وتښتي - شنګاره - شيګاره

**ښنګی :** - (خ/ش+ن+ګ+ی) (اس - مو) هغه حلقه دار پړے چې د څاروو په غاړه کښې اچولے شي - وندر -

**ښنه :** - (خ/ش+نَ) ښپه - پښه -

د دیــدن وړے گـدا کړم د یـار هـجـر
سپے رقیب که مې ښنې نیسي اوس وړیا یم (حسین)

**ښنه** :- (خ/ش+نَ) [صف - مؤ] شنه - زرغونه -

**ـــ کېدل**:- شنه کېدل - زرغونېدل - لکه: "یوه دانه هم نۀ وه راښنه شوې" -

**ښنه** :- (خ/ش+نَ) (اس - مو ، ج - ښینې) ټکړه - بند - جوړ - عضو -

**ـــ ښنه**:- (خ/ش+نَ) ټکړې ټکړې - بند بند - (د بدن) - جوړ جوړ - عضو عضو -

**ـــ ښنه کول**:- (و------ ښنې ښنې کول)

**ـــ ښنه کېدل**:- (و------ ښنې کېدل)

**ښنې** :- (خ/ش+نې) (۱) د "ښنه" جمع ده - (۲) د "ښنه" اضافي او مجروري وغېره حالت -

**ـــ ښنے**:- ټکړې ټکړې - جوړ جوړ - عضو عضو -

**ـــ ښنې کول**:- ټکړې ټکړې کول - د بدن جوړونه - له یو بل جدا کول بند بند جدا کول - اندام اندام کول -

**ـــ ښنې کېدل**:- د بدن بند بند جدا کېدل - ټکړې ټکړې کېدل - اندام اندام کېدل

**ښـو** :- (خُو/شُـو) (ق ، اس - مـذ ، ج - گـان) یـو بالښـتکے چې د دارو د لوښـي دپاسه د چقماق د کاڼي لاندې کښېښودے شي یا د چقمقي ټوپک د کولنګ د لاندې کښېښودے شي -

**ښو** :- (خَ/شَ+و) د "ښۀ" (جمع) اضافي یا مجروري وغېره شکل دے -

**د ـــ نه بدزېږي (د بدونه ښۀ)**:- د ښۀ او نېک خلقو اولاد (کله کله) بد هم پېدا شي - (او د بدو خلقو نه نېک اولاد) -

**ښـوالے** :- (خَ/شَ+وا+لَے) (اس - مـذ) ښۀ والے - د ښۀ کېدلو یـا د ښۀ "بودلـو" کېفیت

**ښوانه** :- (خ/ش+وا+ن) (اس - مذ) د ښوون ونه - د زېتون ونه -

**ښوبے** :- (خ/ش+وَ+بَے) (صف - مذ ، ج - بي) تش لاسے - بې لسې -

**ښوپه** :- (خو/شو+پ) (صف - مذ) (۱) ناسنته - هغه کس چې سنت ئې نۀ وي شوي (۲) جټ - ګنوار -

**ښوڅل** :- (خُو/شُو+(ت)س+ل) (مص) سُورے کول - (سوراخ کول)

**ښوڅنې** :- (خُو/شُو+(ت)سَ+نَ+ی) (اس - مو) برمه - د ترکاڼانو مشهور اله چې سوري پرې کوي -

**ښوڅه** :- (خُو/شُو+(ت)سَ) (اس - مو ، ج - څې) سُورے - (سوراخ)

**ښوڅه** :- (خو/شو+(ت)س) (اس - مؤ ، جج - څې) (۱) ګرمکه - هغه وړې دانې چې په ګرمۍ کښې په بدن راخېجي (راخیژي) -(۲) بې تامله -

**ښودل** :- (خو/شو+د+ل) (مص) (ښوول ، ښئیل)(۱) ښکاره کول - په نظر کښې راوستل - څرګندول - (۲) ورزده کول - (۳) سبق ورکول - نصیحت ورکول - لکه زمانې راته ډېر څۀ راوښودل -

**چل ـــ**:- (چَ+ل) طریقه ورزده کول - طریقه ښودل -

**سبق ـــ**:- (سَ+بَ+ق) سبق ورزده کول -

**سترګې ـــ**:- غصه کول - رعب اچول - قهر څرګندول -

**لار ـــ**:- (لا+ر) رهنمائي کول - په لاره لګول -

**ښودنه** :- (خو/شو+د+نَ) (حمص) ښئینه - ښوودنه - ښکاره کوونه - څرګندونه - تعلیم ورکوونه - ورزده کوونه -

**ښودونکے** :- (خو/شو+دُو+ن+کَے) (اس فا - ج - کي) ښئیلو والـه - ښودلو والـه - ورزده کوونکے - څرګندوونکے -

**ښور** :- (خُو/شُو+ر) (اس - مذ ، ج - ونه)هغه تخته کومه چې د قلبې شاته تړلے شي او پټے پرې هوارولے شي - کېږ - منډاو -

**ښـور** :- (خو/شـو+ر) (صفت - مـذ ، ج - خوارۀ) (۱) غورځېدلے - نوستلے شوے - ګډوډ غورځولے شوے -(۲) شور -

**ـــ ماښور** :- (ما+خو/شو+ر) (اس / صف - مذ)(۱) خورووَر ، تس نس - ګډ وډ - (۲) ګډ وډ غورځولے شوے - نوستلے شوے - (۳) شور شار - شور غوغا - (۴) د چینجو مینجو او د حشراتو پنډه (جمع) -

**ـــ ماښور کول**:- خورووَر کول - تس نس کول - ګډ وډ کول -

ښور ماښور کاندې خلوت په خلوا
چې ور وښنه ئې جمال فتنه انګېز (حمید)

**ـــ ماښور کېدل**:- خور وور کېدل - ګډ وډ کېدل - پرېشانه کېدل -

که قحط که وبا وه که جهان شو ښور ماښور (خوشحال)

**ښور** :- (خو/شو+ر) (اس - مذ ، ج - ونه) (۱) د مېږو د اوسېدو ځاے - مېږتون - (۲) د مچو ګګ - ډومبکے -

**ښور** :- (خو/شو+ر) (اس - مذ) باچاهي - سلطنت -

**ښور** :- (خو/شو+ر) (اس - مذ ، ج - ونه) ښهر - ښار -

د عدم ښور مې اصلي وطن وۀ
د محنت ملک ته ځنې وتلے یم (پیر محمد)

**ښور** :- (خو/شو+ر) (حمص) خوځېدنه - حرکت کوونه -

**پهـــ راوستل**:- پـه حرکت کښې راوستل - رالړزول - لکه جذبات په ښور راوستل

**ښورازه** :- (خو/شو+را+زَ) (صف - مو ، ج - زې) ښورے والازمکه - ښوره زمکه ښورنه - ښورنځه -

**ښورښت** :- (خو/شو+ر+خ/ش+ت) (اس - مذ ، ج - ونه) شورش - شر - فساد -

**ښورکے** :- (خو/شو+ر+کَے) (اس - مذ ، ج - کي) تروکے - شلخے - پلنو پاڼو والـه بوټے چې خوند ئې تریو وي -

**ښـورند** :- (خ/ش+وَ+رَ+ن+د) (اس - مـذ ، ج - ه)خوځېـدونکے - حرکـت کـوونکے - متحرک -

**ښورنه** :- (خو/شو+ر+نَ) (صف - مو ، ج - نې) ښوروالـه - ښوره ناکه - ښور ماغه

**ښورا** :- (خو/شو+ر+وا) (اس مو ، ج - ګانې/وې) د هغه پخکښې (انګول) چې په کښې غوښـه شامله وي - د اوبو په شان نرمې حصې ته خوروا یا شوروا وائي -

**ښوروالـه** :- (خو/شو+ر+وا+لَ) (اس - مو) د ښورې والـه زمکـه - ښرنه - ښره ګره - ښورمزاره -

**ښورول** :- (خو/شو+رَ+ؤ+ل) (مص مت) خوځول - حرکت ورکول -

**جنډۍ ـــ**:- د وړې شان جنډې په ذریعه اشاره ورکول - عموماً د رېل ګاډي بابو په حقله وئیلے شي - چا سره چې دوه قسمه (سره او شنه) جنډۍ وي - د ګـاډي د اودرېدلو د پـاره سـره جنـډۍ خوځـوي او ګاډي ته د روانېدو دپاره شنه جنډۍ خوځوي - مجازاً چاته د لاس یا د بل کوم ځیز په ذریعه اشاره کول -

**ـــ ځان**:- (۱) خپـل ځـان یـا وجود حرکت ورکول - (۲) دځۀ ځیـز د حصـول د پاره حرکت کول - (۳) د څۀ ځیز د حصول خواهش پېدا کېدل -

**ـــ سر**:- سر خوځول - عموماً د "هو" یا د قبلولو د څرګندونې د پاره سر ښکته پورته خوځول - د سر په اشاره "هو" وئیل یا قبلول -

**ـــ ګټې یا ګیټې**:- د زمري یا بله کومه لوبه کښې چې په وړو وړو ګـاڼو (ګیټکو) کـولے شي - خپـل ګیټکي لـه د یـو کـور نـه بـل کـور تـه حرکت ورکول -

**لاس ـــ**:- (۱) لاس خوځول - لاس له حرکت ورکول - کار کول - (۲) د لرې نه اشاره ورکول

**ښورولے** :- (خ/شو+رَ+ؤ+لَے) (اس مف - ج - لي) خوځولے - په حرکت کښې

راوستے شوے

**ښورونګ** :- (خو/شو+رَ+ؤ+ن+ګ) [اق - حمص] (و---------- ښورنه)

**ښورونه** :- (خو/شو+رَ+ؤ+نَ) (حمص) خوځونه - حرکت ورکوونه - په حرکت کښې راووستنه -

**ښوروونکے** :- (خو/شو+رَ+وُو+ن+کَے) (اس فا - ج - کي) خوزوونکے - په حرکت کښې راوستونکے -

**ښوره** :- (خو/شو+رَ) (اس - مو ، ج - رې) (۱) شوره - (۲) سره چې په کښې خاوره ګډه کړے شوې وي - (۳) يو بوټے دے چې شخار ترې حاصلولے شي -

**ـــــ زمکه**:- هغه زمکه چې شوره په کښې پېدا شوې وي - ښوره زمکه - (چې کر کرونده پکښې نه کېږي) - ښوره ماغه -

**ـــــ ماغه**: (ـــــ ما+غَ) (اس - مو) ښورې واله زمکه - ښوره ناکه زمکه - شوره زار -

**ـــــ قلمي**:- (ـــــ قَ+لَ+مي) (اس - مو ، ج - رې) د شورې يو قسم چې د قلم په شان ئې ټوټې وي -

**ښوری** :- (خو/شو+ر+ی) (صف) ښورې واله - شورې واله - ښوره ناک -

**ښورے** :- (خو/شو+رے) (و----- ښورکے)

**ښورے** :- (خو/شو+رَے) (ق ، اس - مذ) د يو مرض نوم دے چې د غوا وغېره په سترګو کښې پېدا کېږي او خلق ئې علاج په زېړ لرګي وغېره کوي-

**ښورېدل** :- (خ/ش) وَ+رې+د+ل) (مص) خورېدل - تيت پرک کېدل - خيرېدل - (صحيح املاء "خورېدل" ده)

**ښورېدل** :- (خو/شو+رې+د+ل) (مص) خوځېدل - حرکت کول - په حرکت کښې راتلل -

**ښورېدلے** :- (خو/شو+رې+د+لَے) [مف - مذ ، ج : لي] خوځېدلے - په حرکت کښې راغلے -

**ښورېدنګ** :- (خو/شو+رې+د+ن+ګ) [اق - حمص] (و------- ښورېدنه)

**ښورېدنه** :- (خو/شو+رې+د+نَ) (حمص) خوځېدنه - حرکت کوونه - په حرکت کښې راتلنه -

**ښورېدونکے** :- (خو/شو+رې+دُو+ن+کَے) (اس - فا - ج - کي) خوځېدونکے - حرکت کوونکے -

**ښورېده** :- (خو/شو+رې+د) [حمص] خورېده - خوځېدنه - په حرکت کښې راتلنه -

**ښورېزه** :- (خو/شو+رې+زَ) (صف - مو) ښورې واله - ښوره ناکه - ښور مارغه -

**ښولنے** :- (خو/شو+ل+نَے) (اس - مذ - ج - نې) (۱) ښوون - (۲) د يو بوټي نوم دے -

پـلـيـو نـه انـا نـاس شفتالو
کړېږي منزبېے ښولنے بـزرګوار (دولت)

**ښومک** :- (خُو/شُو+م+ک) (اس - مذ ، ج - ونه) د يو مرض نوم دے - مرض خرمرګي -

**ښومګڼه** :- (خو/شو+م+ګ+ن+ړ+ه) (اس - مو ، ج - رې) ښۀ پال - ښۀ شګون -

پسې ديـــدن پسې وتلې يم پـــه سېل
په اول قدم راپېښې شوه ښه ښومګڼه (يونس)

**ښون** :- (خُ/شُ+وَ+ن) [اس - مذ] ښوون - د زېتون ونه -

**د ـــ تېل**:- (تې+ل) (اس - جم) د زېتون تېل -

**ښوندے** :- (خ/ش+وَ+ن+دے) [اس - مذ] (و-------- ښويندې)

**ښونګ** :- (خُو/شُو+ن+ګ) (ق ، اس - مذ ، ج - ونه) (۱) د غوزانو (مړدکو) په لوبه کښې دريمه قوته - (۲) د څۀ څيز ګوټ او ګوشه -

**ښونګه** :- (خو/شو+ن+ګَ+ه) (اس - مو ، ج - ګې) د څۀ څيز ګوټ يا ګوښه -

**ښونګي** :- (خُو/شُو+ن+ګَ+ی) (اس - مو) د "ښونګے" تانيث - ګډه - ګوډه - هغه ښځه چې څۀ قدرې ګوډ قدم اخلي -

**ښونګے** :- (خُو/شُو+ن+ګَے) (اس - مذ ، ج - ګي) ګډ - هغه سړے چې پښه ئې څۀ قدرې ګډه وي-

**ښونلے** :- (خُ/شُ+وَ+ن+لَے) (اس - مذ ، ج - لي) د ښوونا (زېتون) بوټے -

**ښوواند** :- (خو/شو+وا+ن+د) (اس - مذ ، ج - ان) استاذ - ښوونکے -

**ښوور** :- (خو/شو+ر) (اس - مذ) (۱) مصنوعي عاشق - عاشق دړی -

ښووره اوس مې ګوره
ستا له کسته ځم او بوله (غاړه)

(۲) رقيب - غماز -

نازک يو ښوور پنځه
پښتنو خود به ئې واهه (غاړه)

**ښوول** :- (خو/شو+ؤ+ل) (ا - ق ، مص) معين کول - ټاکل - غوره کول - مخصوص کول

**ښوول** :- (خو/شو+ؤ+ل) (مص - مت) (۱) ښئيل - ښودل - ښکاره کول - (۲) ورزده کول - تعليم ورکول -

**ښوولے** :- (خو/شو+ؤ+لے) [مف - مذ ، ج - لي] ښودلے - ښئيلے - ورزده کړے -

**ښوون** :- (خو/شو+وَ+ن) [اس - مذ ، ج - نونه] (و--------- ښُون)

**ښوون** :- (خو/شو+ؤ+ن) د "ښوونه" تصغير د سابقې په طور استعمالېږي -

**ـــــ ځـاے**:-(د)ز+ا+ئے) (اس - مذ ، ج - ونه) د تعليم ورکولو ځاے - مدرسه - سکول

**ـــــ ثانوي**:- (ثا+نَ+وي) (اس - مذ ، ج - يونه) د دويمې درجې مدرسه -

**ـــــ لومړنے**:- (لو+م+ړَ+نے) (اس - مذ ، ج - ځايونه) اولنۍ مدرسه يا سکول - پرائمري سکول -

**ـــــ منځنے**:- (مَ+ن+(د)ز+نَے) د مېنځ (وسطي) درجې مدرسه - مډل سکول -

**ښوونګ** :- (خو/شو+ؤ+ن+ګ) [اق - حمص] (و--------- ښوونه)

**ښوونه** :- (خو/شو+ؤ+نَ) (حمص) (۱) ښاينه - ښودنه - ورزده کونه - تعليم ورکوونه سبق ښاينه - (۲) درس - تعليم - سبق -

**ـــــ ورکول**: تعليم ورکول - درس ورکول -

**ښوونکے** :- (خو/شو+وُو+ن+کَے) (اس فا ، ج - کي) (۱) ښايلو واله - ښودلو واله - څرګندوونکے - (۲) ورزده کوونکے - استاذ - معلم - ټيچر -

**ښوونے** :- (خو/شو+ؤ+نے) د "ښوون" اضافي او مجروري وغېره شکل -

**د ـــــ کال**:- تعليمي کال-

**ښوونے** :- (خو/شو+ؤ+نَے) (اس - مذ ، ج - لي) ښوونه ورکوونکے - استاذ - مدرس

**ښوهاندے**:- (خو/شو+ها+ن+دے) [اس - مذ] (و------- ښويندے)

**ښوهول** :- (خ/ش+وَ+هَ+ؤ+ل) (مص) (۱) ښويول - لغزش ورکول - (۲) تېر باسل - دوکه ورکول - (۳) دلوظ قول وغېره نه اړول -

**ښوهونه** :- (خ/ش+وَ+هَ+ؤ+نَ) (حمص) (۱) ښيونه - لغزش ورکونه - (۲) تېر باسنه - دوکه کوونه - (۳) د خپلې ارادې يا لوظ قول وغېره نه اړونه -

**ښوهوونکے** :- (خ/ش+وَ+هَ+وُو+ن+کَے) (اس - فا - ج - کي) (۱) ښويوونکے - لغزش ورکوونکے - (۲) تېر باسلونکے - دوکه کوونکے - (۳) د خپلې ارادې، لوظ او قول وغېره نه اړوونکے-

**ښوهېدل** :- (خ/ش+وَ+هې+د+ل) (مص لا) (۱) ښوئېدل - خوئېدل - لغزش خوړل - (۲) تېر وتل - دوکه کېدل - (۳) په خپله خبره - لوظ قول وغېره ټينګ نۀ پاتې کېدل-

**ښوهېدلے** :- (خ/ش+وَ+هې+د+لَے) (اس مف ، ج - لي) (۱) خوئېدلے - لغزېدلے -

(۲) دوکه شوے - تېر وتلے -

**ښوهېدونګ** :- (خ/ش+وَ+هي+دَ+ن+ګ) (ق - حمص) (و------ ښوهېدنه)

**ښوهېدنه** :- (خ/ش+وَ+هي+د+نَ) (حمص) (۱) خوئېدنه - لغزش موندنه - (۲) تېر وتنه - دوکه کېدنه - (۳) په خپله خبره ، لوظ ، قول وغېره ټینګ نۀ پاتې کېدنه -

**ښوهېدونکے** :- (خ/ش+وَ+هې+دُو+ن+کَے) (اس فا - ج - کي) (۱) خوئېدونکے - لغزش خوړونکے (۲) تېر وتونکے - دوکه خوړونکے (۳) په خپل ځاے خبره ، لوظ ، قول وغېره ټینګ نه پاتې کېدونکے -

**ښوے** :- (خ/ش+وَ+وے) (صف) ښویونکے ځاے - زوېږ - لوند او ختېجن - چېرته چې بنیادم خوئېږي - غړند -

**—— سړے**:-خوئېدونکے سړے - لغزنده سړے -

**ښوے** :- (خ/ش+وَے) (تف) هوار - بې بندېزه - نبغ اورې پورې -

**—— پریوتل**:- د څۀ تېرۀ ځیز ازاد - بې بندیزه اورې پورې وتل -

زما زړۀ تـر کـاڼي سخت وۀ ښوے ترې پرېوت

تـر الـماس ئې د غـمزې غـشے تـېرۀ دے (خوشحال)

**—— تېرول**:- لواړ تېرول - نغړول -

**—— تېرېدل**:- نبغ تېرېدل - بې د ایسارېدلو تېرېدل -

**—— درومل**:- هوار تلل - بې بندریزه تلل - اورې پور تل وتل - نبغ تلل -

د ښو ناوک ئې ښوے درومي تـر زړونو

د ترکانو غشي ښوے درومي تر زرغرلے (خوشحال)

**—— کول**:- ښویانده کول - ښوېدونے کول - غړکول - هوارول -

**—— کېدل**:- ښـویا کېـدل - ښـویـوونکے کېـدل - غړند کېدل - لغزانـده کېـدل - هوارېدل -

**—— مخے**:- (مَ/خَے) (پ تر - اس - مذ ، ج - مخي) هغه هلک چې لاړېره ئې نۀ وي شوې - لغړزنے -

**ښوے** :- (خ/ش+وے) (مص ، مذ) خوشامند ګرے -

**ښوئېدانے** :- (خ/ش+وَ+ئي+دا+ن+ړے) (اس - مذ ، ج - ړي) د ښوئېدو ځاے - ځوېږ لونده ختېجن ځاے چېرته چې بنیادم ښوئېږي - ښویندار -

**ښوے ښاک** :- (خ/ش+وے+کا/شا+ک) ناڅاپـه ورکېـدل - بېخـي ورکېـدل - بالکل ورکېدل -

**ښوے ښهاک** :- (خ/شا+ها+ک) (و---- ښوے ښاک)

**—— ورکېدل**:- (و---- ښوے ښاک ورکېدل)

**ښوئیکۍ** :-(خ/ش+وَ+يَ+ک+ۍ) (اس - مو) یو قسم مرغۍ ده -

**ښویکے** :- (خ/ش+وَ+ي+کے) (اس - مـذ ، مـو - ه) چـالاک - دوکـه کـار - مکـار سړے - تېر اېستونکے -

**ښوېند** :- (خ/ش+وَ+ي+ن+د) (صف ، مذ ، مو - ه) ښویندانے - ښوے ځاے - خویوونکے ځاے -

**ښویندار** :-(خ/ش+وَ+يَ+ن+دا+ر) (اس - مذ ، ج - ونه) د ښوئېدو ځاے - ښـویند -

**ښویندانے** :- (خ/ش+و+يَ+ن+دا+ن+ړے) (اس - مـذ ، ج - ي) ښـویندار - خوېند - ښویوونکے ځاے -

**ښویندوکے** :- (اس - مذ ، ج - کي) (۱) هغه سړے چې بد خویـه وي - چالاک - دوکه مار - مکار -(۲) ښوېدونکے - خوئېدونکے -

**ښویندے** :- (خ/ش+وَ+ي+ن+دے) (و---- ښویندوکے)

**ښوېند** :- (خ/ش+وے+ن+دَے) (اس - مذ ، ج - دي) د چمیـارانو یـو اوزار - چې د پښې طرفونو له پرې ځلا ورکوي -

**ښـویندے** :- (خ/ش+وے+ن+دَے) (اق - اس - مـذ ، ج - ي) د ماشـومانو د لوبـو هغه ځیز چې ماشومان پرې ځان د لوړ ځاے نه په ښکته راښویه وي -

**ښـویول** :- (خ/ش+وَ+يَ+ؤ+ل) (مـص) (۱) ښـویول - خویـول - لغـزش ورکـول - (۲) دوکه کول - تېرا یستل -(۳) د خپل ځاے خبرې ، قول، لوظ ، اړول - (۴) په مقابله (یا جنګ کښې) نړول - تېښتې ته جوړول -

**ښـویولے** :- (خ/ش+وَ+يَ+ؤ+لَے) (اس - مـف ، ج - لـي) هغـه کـس چـې لغـزش ورکړے شوے وي -

**ښویونګ** :-(خ/ش+وَ+يَ+ؤ+ن+ګ) [ق - حمص] (و------ ښویونه)

**ښـویونه** :- (خ/ش+وَ+يَ+ؤ+نَ) (حمص) (۱) لغزش ورکوونـه - (۲) تېرا یسـتنه - دوکه کوونه - (۳) د خپل ځاے ، لوظ ، قول یا خبرې وغېره نه اړوونه - (۴) په مقابله کښې ماتې جوړوونه - نړوونه -

**ښویوونکے** :- (خ/ش+يَ+وُو+ن+کَے) (اس فا ، ج - کي) (۱) لغزش ورکوونکے - ښویوونکے - (۲) دوکـه ورکوونکے - تېرایسـتونکے - (۳) د خپلې خبرې ، ځاے لوظ قول وغېره ن پـه شاکوونکے - (۴) پـه مقابله کښې د مخالف ماتې ته جوړوونکے - نړوونکے -

**ښـویه** :- (خ/ش+وَ+يَ) (صف) (۱) ښـوئیند - ښـئیندونکے ځاے - (۲) مهینـه او هواره سطحه وغېره -

**—— ښـالاکه**:- (خا/شا+لا+کَ) (ق ،صف ، مـو ، ج - کـے) داسـې دېـوال چـې ډېـر مهـین (هـوار) صـفا او مضبـوط وي چـې ورختـل ګـران وي لکـه ښـویه ځالاکه قلا ده -

**په —— وئیل**:- هوار وئیل - روان وئیل - چې په دنیا کښې چېرته هم نۀ ښلـي یـا دا چې د لفظ درست تلفظ کوي -

**ښـویېدل** :- (خ/ش+ؤ+ئي+د+ل) (مـص) (۱) ښـوېدل - لغـزش ورکـول - (۲) تېـر وتل دوکه کېدل - (۳) په خپله خبره لوظ ، قول ، ټینګ نه پاتې کېدل -

**—— د سینې په زور**:- په زمکه یا فرش وغېره داسې حرکت کول چې سینه ئې په زمکه یا فرش لګېدلې وي او لکه د مار په وړاندې ځي -

**—— ښپه/ پښه**:- (خَ/ش+پَیاپ+خَ/شَ) په جن یا بله کومه مقابله کښې ټینګ نۀ پاتې کېدل - تېښتې په ماتې ته جوړېدل -

**ښوېدنګ** :- (خ/ش+وَ+يې+د+ن+ګ) [ق - حمص] (و-------- ښوئېدنه)

**ښـویېدنه** :-(خ/ش+و+ئـي+د+نَ) (حـمص)(۱) خوئېدنـه - لغـزش موندنـه - (۲) دوکـه کېدنـه - تېروتنـه - (۳) (پـه جنګ یـا مقابله کښې) ټینګ نـه پـاتې کېدنه - ماتې ته جوړېدنه -(۴) په خپله خبره ، لوظ ، قول، وغېر ټینګ نه پاتې کېدنه - لوظ ، قول ، نه اوړېدنه -

**ښوېدونکے** :- (خ/ش+وَ+ئي+دُو+ن+کے) (اس - فا - ج - کي)(۱) لغزش موندونکے (۲) دوکـه خوړونکے - تېـر وتـونکے -(۳) مقابله یـا جنګ کښـې ټینګ نـه پـاتې کېـدونکے - مـاتې تـه جوړېـدونکے (۴) د خپـل لـوظ ، قـول ، یـا خبـرې نـه اوړېدونکے -

**ښوېدۀ** :- (خ/ش+وَ+ئي+د) [حمص] (و--------- ښئېدنه)

**ښه** :- (خ/شَ) (حرف) حرف دے - د منني او د قبلولو معنٰی ورکوي -

**ښـه** :- (خ/شَیا خ/ش) (صف) دا لفظ ډېرې معنٰی لري لکه(۱) نېک د بد په مقابله کښې - فلانے ښۀ سړے دے -

ښه ده ښه ده دا دنیا

چې تو ښه ده د عقبٰی (رحمان بابا)

(۲) تکړه - ماهر - د صفت ور - ښـۀ تېر انداز -(۳) د اثبات کلمـه - هـو - منم - وغېره -

**—— آغلې**:- (آ+غ+لې) (و------- ښاغلې)

**—— اواز**:- (ا+وا+ز) (اس - مذ ، ج - ونه) ښکلے اواز - سُرناک اواز -

**—— اېسـېدل**:- (۱) ښـه ښـکارېدل - ښـکلے ښـکارېدل - زېـب کـول - (۲) خـوښ

"بودل" خوښول - زما ښه ايسي - زما خوښ دے - (عموماً "ښه شي" وائي)

ـــ **بده:-** ښۀ حالت او بد حالت - غم او ښادي - هر قسم حالات -

ـــ **بده پېښېدل:-** ښۀ يا بد حالات دو څاربدل - عموماً ناګواره واقعه پېښېدل - څۀ تکليف يا مصيبت دوڅاره کېدل -

ـــ **په ښه:-** (تف) په دوو متضادو نتيجو يا پېښو کښې د هغې نتيجې يا پېښې وغېره په حقله وئيلے شي - کومه چې د چا د غرض او مقصود مطابق وي لکه که فلانې درله روپۍ درکړي خوښه په ښه ګڼې -

ـــ **پېښېدل:-** مناسب نېک حال يا واقعه ور دوڅاربدل لکه خداے دې ښو پېښېږ او که څۀ بده پېښه شوه نو تا به خبر کړم -

ـــ **ترا:-** (ت+را) (تف) (۱) خوب تر - د ښۀ نه ښۀ - زيات ښۀ - (۲) په ښۀ طور - په ښۀ ډول -

ښۀ ئې پوست تنه ووزه له حاله ئې خبر شه
دے پېښتنه ښه تراله ورايه په ورو ورو (مهين)

ـــ **تر ښۀ:-** (تَ+ر+خَ/شَ) (و ---- ښۀ نه ښۀ)

ـــ **توښه:-** (تو+خَ/شَ) (اس - مو ، ج: ښې توښې) د سفر ښۀ سامان - مجازاً نېک عملونه - ښۀ کارونه چې د اخرت په سفر کښې به پکار ېږي -

ـــ **توښه کېدل:-** ښه توشه جوړېدل - په ښې راتلل - د زړۀ تسله کېدل-

بې د ستا د مخه کون دے که مکان دے
ښه توښه مې نۀ په دې شي نۀ په دا (رحمان بابا)

ـــ **ځوان:-** (۱) ښکلے او ښۀ تن وجود واله زلمے - (۲) ښۀ کارونه کوونکے - خصوصا سخي - (۳) مړنے - بهادر - تورزن -

ـــ **ځواني:-** په ځوانۍ کښې ښۀ کارونه کوونه - مېړنتوب - بهادري - سخاوت - خوش اخلاقي -

ـــ **ځواني توب:-** (تو+ب) د ښې ځوانۍ ښۀ خويونه او عادتونه -

ـــ **ځواني توب کول:-** د بهادرۍ ، د مېړانے کار کول - سخاوت کول - اخلاق څرګندول -

ـــ **ځواني توب ښئيل:-** د ښې ځوانۍ توب کارونه کول -

ـــ **چار:-** (چا+ر) (اس - مذ ، ج - رونه) ښۀ کارونه - نېک کارونه -

ـــ **چار وئيل ، چاته:-** چاته ستړي مشي وئيل - علېک سلېک کول - (و --- ښې چارې)

ـــ **چاروکے:-** (چا+رُو+کَے) (اس - مذ ، ج - کي) ښۀ کار کوونکے - د کار مړنے -

ـــ **چاره:-** (چا+رَ) (اس - مو ، ج - رې) د "ښه چار" تانيث دے -

ـــ **چارې:-** (جمله) يوه جمله ده چې په ځينو سيمو کښې د "سلام" په توګه استعمالېږي - خصوصاً هغه وخت چې زميندار په خپل کار کښې لګيا وي نو په لاره تېرېدونکے (يا هغه له ورتلونکے) ورته وائي - "ښۀ چارې" (يعنې ستا دے چار يا معامله ښه وي) - هغه ورته په جواب کښې (عموماً) وائي چې خوار مه شي-

ـــ **چې:-** ------------

ـــ **ده چې:-** ------------

ـــ **شوه چې:-** (جمله) په داسې موقع وئيلے شي چې يو کار د چا د ضرورت يا خواهش مطابق بې ددۀ د کوښښه اوشي -

راز ئې ولې ښکاروۀ ، ښۀ چې په دار شو
د منصور سزا تر دا وه لا بتره (خوشحال)

ـــ **دې مله شه:-** (جمله) (و ---- په مخه دې ښه شه)

ـــ **راغلاست:-** (را+غ+لا+س+ت) (جمله) د ښۀ راغلے صيغه ده - ګنو راتلونکو کسانو ته په طور د پخېر راغلي وايه شي -

ـــ **راغلي:-** (را+غ+لي) (اس - مو) هر کلے - ستړي مشي کول - خوش امدي وئيل -

ـــ **راغلے:-** (را+غ+لے) (اس - مذ ، ج - لي) هر کلے - ستړے مه شې - په خېر راغلې لکه ښۀ راغلي قدرې ئې ورته وئه وې -

ـــ **راغلې وئيل ، چاته:-** ستړې مه شې وئيل - په خېر راغلې وئيل - هر کلے وئيل - خوش امديد وئيل -

ـــ **زړه توب:-** (ز+ړ+تو+ب) (اس - مذ ، ج - ونه) ښۀ زړۀ والے - ښۀ زړۀ لرنه - ښۀ خوي خصلت - خوش اخلاقي -

ـــ **زړه تيا:-** (ز+ړ+ت+يا) (و ----- ښۀ زړه توب)

ـــ **زړے:-** (ز+ړے) (اس - مذ ، ج - ي) د ښۀ زړۀ خاوند - نېک رحمدله - بدسلوکه نه کوونکے -

ـــ **شوه:-** (جمله) د پېښېدونکې واقعې وغېره په حقله وئيلے شي چې دا کار يا واقعه د ضرورت مطابق پېښه شوه لکه ښه شوه چې ته راغلې ! يا ښه شوه چې فلانے غل ووژلے شو -

ـــ **ښکاربدل:-** (۱) جامه وغېره چاسره ښکلې ښکارېدل - يا مناسب لرې - لکه دا چوغه درسره ښه ښکاري - (۲) په کوم عمل يا کار سره د نورو په نظر کښې نېک ښکارېدل - (۳) څۀ کار يا عمل چا سره مناسب لرل - لکه دا کار تا لره ښۀ نۀ ښکاري

ـــ **ښندنه:-** (خَ/ش+ن+د+نَ) (اس - مو ، ج - نے) ښۀ خرڅ - ښۀ خېرات - ښۀ مصرف -

ـــ **ښندنه کول:-** (۱) ښۀ خرڅ کول - ښې پېسې ټکې لګول - (۲) خېرات کول -

ـــ **ښۀ:-** (خَ/شَ) واه واه - ډېر ښۀ - د تعريف کلمه ده -

ښه ښه بخ بخ دلداره وفا جويه غمګساره (خوشحال)

ـــ **ښه:-** (خَ/شَ) ----------------

ـــ **ښا:-** (خَا/شَا) (تعجب) د تعجب په موقع وئيلے شي لکه ښه ښا نو هغه دومره زړۀ ور شو چې!

ـــ **عمارت:-** (ع+ما+ت) (اس - مذ ، ج - ونه) ښکلے جوړ شوے عمارت - مضبوط يا دنګ لوړ ، وغېره جوړ شوے عمارت -

ـــ **غوندې:-** (ص) داسې څيز يا کار چې په پوره ډول ښۀ نۀ وي لکه د ښۀ والي رنګ نۀ لري -

ـــ **غونې:-** (غُو+ن+ړَے) (اق - اس - مذ ، ج - ړي) ښۀ خوئي - ښۀ خصلت -

ـــ **کول:-** (۱) نېکي کول - نېک عمل کول - (۲) نېک سلوک کول - غوره سلوک کول - ښېګړه کول - چاسره -

مختوري د رقيبانو د يار وصل
فلک ښۀ راسره وکړه دا دواړه کاره (خوشحال)

(۳) جوړول - د مرض وغېره نه روغول لکه دې دارو ښۀ کړم -

ـــ **کېدل:-** (۱) نېک کېدل - ښۀ عمل ته راوړېدل لکه فلانے اوس ښۀ شوے دے (۲) د بيمارۍ وغېره نه رغېدل - يا په رغېدو راتلل لکه اوس هغه بيمار ښۀ شوے دے يا زۀ اوس ښۀ يم -

ـــ **ګڼل:-** د نېکۍ ګمان (په چا) کول - نېک او ښۀ سړے شمارل -

ـــ **لګېدل (په چا):-** خوښېدل - په زړۀ ښۀ لګېدل -

که مې وژنې تېغ را واخلې
د دۀ تېغ لګي په ما ښۀ (خوشحال)

ـــ **لګېدل ، په سترګو:-** په کتو يا لېدو ئې خوشحاله کېدل - (عموماً په نفي کښې استعمالېږي لکه فلانے مې په سترګو ښۀ نۀ لګي -

ـــ **مرغ:-** (م+ر+غ) (صف ، مذ ، مو - ه) بختور - طالع من - تالېمن - ښادمن -

ـــ **مرغے:-** (م+ر+غ) (اس - مذ ، ج - غي) نېک فاله - ښۀ پال واله - ښۀ تندي واله - مجسته - خوش قسمته -

ـــــ مرغي:- (م+ر+غي) (اس-مو) ښهٔ فالي-ښهٔ پالتوب-نېک فالي-خوش قسمتي-تبرک-

ـــــ مرغي وئيل:- خوش بختي وئيل-د ښهٔ شګون وېنا کول-د ښهٔ پېښېدو خواهش کول-په مخه ښه وئيل-

ـــــ منومې:- (مَ+نُو+مې) (اق-اس-مذ، ج-مې) شکريه ادا کوونکے-مننه کوونکے-

ـــــ مياشت:- (م+يا+ش+ت) د سېرې مياشت-صفر-

ـــــ ورځ لېدل:- د ژوند کاميابه او د خوشحالۍ ورځ لېدل-

ـــــ ونه:- (ؤ+نَ) (اس-مو، ج-نې) د ښوون ونه-د زېتون ونه-

ـــــ ئې شي:- (جمله) د "بدې شي" په مقابله کښې دا جمله د خوښې او پسند کولو د اظهار د پاره وئيله شي-په نظر يا په زړهٔ ښه لګي-د طوطي له مخه ښه يشي قفل-

په ـــــ حال کښې لغتې وهل:- ناشکري کول-کفران نعمت کول-

په ـــــ راتلل:- پکار ېدل-په تکليف وغېره کښې امداد او اعانت وغېره کول-ښېګړه کول لکه چې سخته کښې مې په ښهٔ راښهٔ شې نو په راحته به دې څهٔ کړم-

په مخه دې ـــــ (شه):- (پ، ،+خَ،دې) (جمله) د چا مېلمه وغېره د رخصتولو په موقع وئيلے شي چې ځه-سفر دې ښهٔ شه-يعني په سفر کښې درته څهٔ بده پېښه مه شه-د ګڼو کسانو د پاره "د" په ځاے د "مو" (د جمع ضمير) راوستے شي-يعني په مخه مو ښه شه-

حال ـــــ کول:- حال غوره کول-په حال کښې بهتري راوستل-

خداے ـــــ درولي:- (جمله) خداے دې ښهٔ درپېښ کړي-د رخصت په وخت دعائيه جمله ده- (و ـــــ په مخه دې شه)

د ـــــ ځايه:- (د)زا+يَ) د ښهٔ کور-د اوچت خاندان-

زوړې ځوان نهٔ کا که ئې کاندي

فکر بويه له ښهٔ ځايه وي بارے (خوشحال)

د ـــــ کور:- (دَ+کو+ر) ------

د ـــــ کورنۍ:- (دَ+کو+رَ+نَ+ی) د ښهٔ خاندان-د اوچت يا لوے کور-د عزتمند خاندان

د ـــــ نه ښهٔ:- د يو ښهٔ څيز نه زيات ښهٔ څيز-د ټولو نه غوره او اعلیٰ څيز-بهترين څيز-

ډېره ـــــ:- (دمننې حرف) د چا د خبرې يا د خواست د منلو د پاره وئيلے شي-په دواړو سترګو-

له ـــــ توښې ايستل:- له کاره ايستل-بېکاره کول-

له ـــــ ويستل:- له کاره ويستل-بېکاره کول-

ښه :- (خَ/شَ ياخ/ش) (صف) تکړه-مړنے-ماهر-

ـــــ ليندے:- (لي+ن+دَے) (اس-مذ، ج-ي)تکړه-غشي ويشتونکے-په غشو ويشتلو کښې مړنے-

ـــــ نښانچي:- (ن+خا/شا+ن+چي) (اس-مذ، ج-ان) ښه نښه ويشتونکے-د نښې د ويشتلو مړنے-د نشانه بازۍ ماهر-

ښه :- (خَ/شَ) (صف، ج-ښې) ډېر-کافي-لکه: وېنا ورته وکړه-ښې ډېرې روپۍ راکړه-

ښه :- خَ/شَ) پوره-مکمل طور سره لکه ښهٔ مې ياد دي چې ـــــ يا ښهٔ مې پوهه کړه

ښــه :- (خَ/شَ) (حرف اثبات) د څهٔ خبرې د منلو د اظهار د پاره وئيلے شي-يعني ماته منظوره ده چې څنګه تهٔ وائې هغه شان به کوم يا کولې شي وغېره-

ـــــ ښه:- د چا د خبرو په جواب کښې د "ښه ښه" لفظ وئيل-مجازاً چې څوک څهٔ وائي که هغه صحيح وي او که غلط د هغې نه انکار نهٔ کول او خلاف ئې څهٔ نهٔ وئيل-په ظاهره منل-په ظاهره رائې يوه کول-

ـــــ کول:- د چا په جواب کښې "ښه" وئيل-منل-مننه کول-د چا د خبرو د منلو اظهار کول-منظورول-هغه راته ښه کړې دي-

ـــــ نه کول:- د څهٔ خبرې په ځواب کښې د "ښه" لفظ نهٔ استعمالول-نهٔ منل-انکار کول-

ښه :- (خ/ش) (حرف) عموماً د خبرو د ختمولو يا د نتيجې په موقع وئيلے شي-تکيه کلام دے-لکه ښه نو-زهٔ به اوس لاړ شم- (عموماً "نو" هم ورسره راځي)-

ښهٔ والي :- (خَ/شَ+وا+لي) (۱) د "ښهٔ والے" جمع ده-(۲) د "ښهٔ والے" اضافي او مجروري وغېره شکل-لکه د ملک د ښهٔ والي د پاره-

ښــها :- (خَ/شَ+ها+ر) (اس-مو، ج-ګانې/وے) نعمت-بخښنه-موهبت-ورکړه-

ښهانه :- (خَ/شَ+ها+ن+ړ)(و ------ ښهانه) په چا پورې ښهانه پرېښودل-

ښَهَانه :- (خَ/شَ+ها+نَ) (اس-مو، ج-نې) بهبود-نېکي-نفع رسول-

ـــــ پرېښودل:- عزت وحرمت د چا د پاره پرېښودل دا محاوره عموماً د نفي په صورت کښې استعمالېږي-لکه فلاني څهٔ ښهانه روپورې پرې ايښې ده-يعني څهٔ عزت ئې راکړے دے يا څهٔ ئې د عزت حرمت په نظر راته کتلي دي-

ښهر :- (خَ/شَ+ه+ر) (اس-مذ، ج-ونه) شهر-ښار-شار-خار-

ـــــ د علوم:- د علمونو ښهر-حضور پاک صلعم ترې مراد دے-يو حديث ته اشاره ده-انا مدينه العلم و عليٌّ بابها (زه د علم ښار يم او علي رضي الله عنه ئې ور دے)-

شي ښار د علومو

تر کمال حاصلېده (حافظ)

ښهرګه :- (خَ/شَ+(ه)+رَ+ګَ) (اس-مو، ج-ګې) ښارونۍ-ښارو-مېنا-

هر څوک په ده اواز کا

که طوطا دے که ښار(ګه)

ښهرونۍ :- (خَ/شَ+(ه)+رَ+نَ+ی) (صف-مو) د ښهر (شهر) سره متعلق-د ښهر-د شهر-د ښار-د خار-

ښهرې :- (خَ/شَ+(ه)+رَ+ی) (اس-مو) د "ښهرے" تانيث دے-د ښهر (شهر) اوسېدونکې ښځه يا بل کوم مؤنث څيز شارۍ-خارۍ-

ښــهرے :- (خَ+شَ+(ه)+رَے) [اس-مذ، ج-ري يا ښهريان] د ښهر اوسېدونکے (د کلي وال په مقابله کښې) شارے-خارے-

ښهري :- (خَ/شَ+(ه)+رِي) (صف-مو) (۱) د شهر سره متعلق-(۲) د "ښهرے" اضافي يا مجروري شکل-شاري-خاري-

ښهل :- (خ/ش+ه+ل) (مص) عاق کول-محرومه کول-

ـــــ کېدل:- عاق کېدل-ګناه ګار کېدل-ښهېل کېدل-

ښــهلال :- (خَ/شَ+ه+لا+ل) (اق-اس-مذ، ج-ان) هغه زوے چې مور او پلار ترې وېزاره شوي وي-ښهيلے-عاق شوے-عاق-

ښهلے :- (خ/ش+ه+لَے) (اس مف، ج-لي) عاق شوے-محروم شوے-بدعمله-لکه دمور و پلار ښهلے-

ښهلي :- (خَ/شَ+ه+لي) (و ـــــ ښهلے)

ښهمار :- (خَ/شَ+(ه)+ما+ر) (اس-مذ، ج-ان، مو-ه) اژدها-ډېر لوے مار-

دم جــړ ئې اثــر نهٔ کــه خواجه محمد ئې وخوړ

تهٔ چې پر مخ پېزوان توري زلفې شهمارې لري (خواجه محمد بنګش)

ښهنه :- (خ/ش+ه+نَ) (حمص) عاق کوونه-محروم کوونه-

**ښهونکے** :–(خ/شَ+هُو+ن+کَے) (اس فا ، ج - کي) عاق کوونکے -

**ښۀ** :– (خ/شَ+ۀ)(اس - مو) د "ښې" تانيث - سم - (د ګټ يا کينې ضد) (ف : راست)

**ښۀ** :– (خ/شَ+ۀ)(صف) د "ښۀ" سره متعلق - عموماً د مصدر د يوې برخې په طور استعمالېږي - لکه څنګه چې د "بدي" (بَ+دي) لفظ استعمالېږي -

**ـــــ کېدل**:- خوښ "بودل" په زړۀ ښۀ لګېدل - لکه فلانے مې ډېر ښۀ شي -

**ښے** :– (خ/شَے) (ص - مذ ، مو - ښۀ) د ګټ يا د کينې ضد - سم لکه ښے لاس-

**ـــــ پله**:- (پ+ل) (کاکړ) (اق ، پ تر - صف) خوښېدونکے او ښه رس -

**ـــــ ګرز(ځ)**:- (ګ+ر+ز/ځ) (امر) يو فوځي امر دے چې فوځ ته ښي طرف ته وګرځېدل حکم دے -

**ـــــ لاس**:- (لا+س) (اس - مذ ، ج - ونه) (۱) سم لاس - د ګټ يا د کينې لاس ضد - (۲) اولې درجې امدادي - د ټولو نه اهم ملګرے - اهم مددګار - لوے مرستيال -

**ښې** :– (خي/شي) (اس - مو ، ج - ګاني) د "ښ" توري ته ځينې خلق خې هم وائي - (چې عموماً "خين" نومېږي) -

**ښې** :– (خي/شي) (صف - ج) (۱) د "ښۀ" تانيثي جمع ده - (۲) د "ښۀ" مونث يا مجروري وغېره شکل دے -

**د خپلې ـــــ**:- د خپلې فائدې - خود غرضه -

زويه که ورونه که ښۀ ياران دي

واړه دي وليدل د خپلې ښې دي (خوشحال)

**د ـــــ بدې**:- د ښۀ يا بدو حالاتو د پاره لکه دا روپۍ ماد ښې دبدې د پاره ايښې دي - د غم يا د ښادۍ د موقعې دپاره - لکه دا مې د ښې بدې جامې دي -

**د ـــــ توښې ايستل/وباسل**:- د کار ايستل - د (ښۀ) کار پاتې کول -

**د ـــــ نه "بودل"**:- بې کاره "بودل" د هېڅ کار نه "بودل" بې کاره بې فائدې، بې ښېګړې، "بودل" لکه فلانې خو د هېڅ ښې نۀ دے -

**د ـــــ ورځې**:- (و+رَ+(و)+ې) (تف) د خوشحالۍ نه - د ښۀ حالت په وجه - (د بدې ورځې په مقابله کښې) لکه دا شلېدلې جامې ما د ښې ورځې خو نۀ دي اغوستې -

**د ـــــ ورځې څښتن**:- (وـــــ د ښې ورځې خاوند)

**د ـــــ ورځې خاوند**:- (خا+و+ن+د) (اس - مذ ، ج - ان) هغه کس چې عمر ئې ښۀ تېرېږي - کامياب او خوشحاله سړے -

**د ـــــ ورځې خاوند شې**:- (جمله) (۱) دعائيه جمله ده - يعنې ورځې دې بختورې او کاميابه شه - (۲) کله کله د نفي په صورت کښې د ښېرې په طوره هم وايه شي - لکه د ښې ورځې خاوند مه شې -

**د ـــــ ورځې مخ لېدل**:- ښه ورځ لېدل - په ژوند کښې د کاميابۍ او د خوشحالۍ ورځ راتلل -

**ښي** :– (خي/شي) (۱) د "ښې" اضافي او مجروري وغېره شکل - (۲) "ښې" جمع -

**ښايست** :– (خ/شَ+يا+س+ت) (فعل) د ښودل مصدر نه جمع امر صيغه - وښائي -

**ښايلمې** :– (خ/ش+يا+ل+مې) (اق - اس - ج) د خولې لاړې -

**ښېته** :– (خي/شي+تَ) (صف - مؤ) سيخ کباب - وريته - يوه څربه غوا بهر لګيا وه څريده ، راوئې نيوه ذبح ئې کړه او ښيته ئې کړه - (عنوان النصائح)

**ښيځ** :– (خِي/شِي+(د)+ز) (اس - مذ ، ج - ونه) غنې - غوندل - زهرناک جولا

**ښيځکۍ** :– (خِي/شِي+(د)زَ+کَ+ۍ) (اس - مو) مشهوره غټه ننکۍ - د مبل - لونه - نونه - ښيځنه -

**ښيځه** :– (خِي/شِي+(د)زَ) (اس - مو ، ج - ځې) د ښيځ مونث دے -

**ښيځه** :– (خِي/شِي+(د)+زَ) (اس - مو ، ج - ځې) مشهوره غرئيزه سبزي ده - شرے

**ښيځې** :– (خ/شي+(د)+زَے) (اس - مذ ، ج - ځې) د يو شين رنګ ګل نوم دے

**ښېرا** :– (خې+شې+را) (اس - مو) (۱) ښېره - بد دعا - (۲) کنځل - ښکنځل - دشنام

**ښېراز** :– (خې+شې+را+ز) (سابقه) د ښېرازه مخفف دے - د سابقې په طور نورو الفاظو سره راځي - تازه - مجازاً خوشحال - اباد -

**ـــــ توب**:- (تو+ب) (اس - مذ ، ج - ونه) (۱) تر و تازګي - شين والے او شادابي - ښېرازي - (۲) اباديدنه - صحتوري - صحتمندي - خوشحالي -

**ـــــ تيا**:- (ت+يا) (اس - مو ، ج - ګانې) (وـــــ ښېرازتوب)

**ښېرازول** :– (خې/شې+را+زَ+ؤ+ل) (مص مت) (۱) تر و تازه کول - شادابول - نشو نما ورکول - (۲) ابادول - صحت ورکول - غټول - څربول - خوشحالول -

**ښېرازونګ** :– (خې/شې+را+زَ+ؤ+ن+ګ) (ق - حمص) (وـــــ ښېرازونه)

**ښېرازونه** :– (خې+شې+را+زَ+ؤ+نَ) (حمص) (۱) تر و تازه کوونه - شادابوونه - نشوونما ورکوونه - (۲) ابادوونه - صحت کوونه - غټوونه - څربوونه - خوشحاله ونه -

**ښېرازوونکے** :– (خې/شې+را+زَ+وُو+ن+کَے) (اس فا - ج - کي) (۱) تر و تازه کوونکے - شادابوونکے - نشوونما ورکوونکے - (۲) ابادوونکے - صحتمند کوونکے - څربه وونکے - خوشحاله کوونکے -

**ښېرازه** :– (خې/شې+را+زَ) (صف - مذ ، ج - ه) (۱) شين - تر و تازه - (ونه بوټي) - (۲) مجازاً - اباد - صحتور - خوشحاله -

**ـــــ کول**:- (مص) (۱) تر و تازه کول - شادابه کول -

عاقل هغه کـه چې دښمن زهر شي

تـا د نفس زېـله ولې ښېرازه کړه (حافظ)

(۲) ابادول - څروبول -

**ـــــ ګرځېدل**:- تر و تازه ګرځېدل - اباد ګرځېدل -

اشنا مـې کوز کړ تور لحد ته زۀ ښېرازه ګرځم

د مينې لاهې مې دروغ شولې ربنتيا به نۀ شي (حافظ)

**ښېرازي** :– (خې/شې+را+زي) (اس - مو) (۱) تر و تازګي - شادابي - وده - (۲) وده - ابادي - صحتمندي - خوشحالي -

**ښېرازېدل** :– (خې/شې+را+زې+د+ل) (مص لا) (۱) تروتازه کېدل - شادابېدل - (د ونو بوټو) نشوونما موندل - (۲) وده کول - اباديدل - صحتمند کېدل - څربېدل - خوشحالي راتلل -

**ښېرازېدنګ** :– (خې/شې+را+زې+دَ+ن+ګ) (ق - حمص) (وـ ښېرازېدنه)

**ښېرازېدنه** :– (خې/شې+را+زې+د+نَ) (حمص) (۱) نشوونما موندل - سر سبز و شاداب کېدنه - تروتازه کېدنه - (۲) وده کوونه - څربېدل - صحت کېدنه خوشحالي موندنه -

**ښېرازېدونکے** :– (خې/شې+را+زې+دُو+ن+کَے) (اس فا ، ج - کي) (۱) وده کوونکے تر و تازه کېدونکے - شادابېدونکے - (ونه بوټي) (۲) وده کوونکے - صحتمند کېدونکے - ابادېدونکے - څربېدونکے -

**ښېرون** :– (خې/شې+رُو+ن) (ق ، اس - مذ) يو غرئيزه ونه ده چې ښوون د ونې شان وي

**ښېرونه** :– (خې/شې+ر+ؤ+نَ) (اس - مو ، ج - نې) (۱) د يو ې ونې نوم دے - خنجک - (۲) اغزکے - چې په داروګانو کښې استعمالېږي-

**ښېروه** :– (خې/شې+ر+ؤ) (ق ، اس - مو) د يوې غرئيزې ونې نوم دے -

**ښېره** :– (خې/شې+رَ)(اس - مو ، ج - ې) بد دعا - د خداے پاک نه د چا د پاره بد غوښتل

په دعاګانو پوره نۀ شوه

اوس به ښېرې درته کوم که دعا شينه (ټپه)

ـــــ **کول:** بد دعا غوښتل - بد دعا کول -

**ښـېرې :** – (خېِ/شـېِ+رې) (اس - مـو ،ج) (۱) د "ښـېره" جمع ده - (۲) د "ښـېره" اضافي يا مجروري شکل دے -

ـــــ **کول:** بد دعا ګانې غوښتل - ډېرې بد دعاګانې کول - د خدا ے پاک نه د چا د پاره بد غوښتل - (خصوصاً د کمزوري او مظلوم سړي) -

ـــــ **لګېدل:** - د چا د بدعا اثر کېدل - د چا په بد دعا سره چاته نقصان يا تکليف پېښېدل -

**ښېښـاري :** – (خېِ/شېِ+خا/شا+رې) (اق - اس - مـو) د کاشـي ګـري کـار - پـه خاورين لوښو د نقاشئ کار -

**ښېښـه :** – (خِيِ/شِـيِ+خَ/شَ) (اس - مو ، ج - ښېې) (۱) شيشـه - د خاص قسم رڼو شګو وغېره نه جوړ شـوے هغـه څيز چې اورې پـورې پکښـې ښکاري - ددې نـه تختـې هـم جوړېږي او لوښـي او نـور قسم قسم څيزونه ترې جوړولے شي - (۲) ائينه - د ښيښې هغه ټکړه چې شاته ئې مصاله لګېدلې وي او مخامخ پکښې د سړي څېره وغېره مخامخ څيزونه ښکاري - (۳) د شرابو بوتـل يـا د شرابو صراحي چې د رڼې ښېښې نه جوړه شوې وي -

که غمخوار غواړې په غم او پـه اندوه کښې

ښـيـښـه ډکـه د شـرابـو اخـتـيـار کـــړه (رحمان بابا)

ـــــ **ګر:** - (ګَ+ر) (اس - مذ ، ج - ان ، مو - ه) ښيښې جوړوونکے -

عام به چېرې د خوشحال په وئيل پوه شي

د ګوهـرو قدر څـۀ زده ښـيـښـه ګـرو (خوشحال)

**ښيښه :** – (خِ/شِي+خَ/شَ) (صف) صفا - رڼا - ښکاره - واضح -

ـــــ **کول:** صفا کول - پوره پوره او صحيح څرګندول - واضحه کول - ائينه

ـــــ **کېدل:** - صفا کېدل - پوره پوره او صحيح څرګندېدل - واضحه کېدل - ائينه کېدل -

**ښيښه :** – (خِ/شِي+خَ/شَ) (اس - مو) د يو قسم واښو نوم دے چې پـه واورينو علاقو کښې کېږي -

**ښيښـئ :** – (خِي/شِي+خَ/شَ+ئ) (صـف - مـو) د ښيښـې (شيشـې) سـره تعلـق لرونکے - د شيشې - لکه ښيښئ نل -

**ښيښې :** – (خِي/شِي+خي/شي) (اس - مو) د ښيښې نه جوړ شوے وړوکے بوتل -

**ښيښې :** – (خِي/شِي+خي/شې) (اس - ج) د ښيښـه جمع - عينـک يـا چشـمې تـه وائي - لکه ښيښې ئې پر سترګو واچولې -

**ښـيګړ :** – (خي/شي+ګ+ړ) (سابقه) د ښيګړه مخفف دے - د سابقې پـه طـور استعمالېږي -

ـــــ **وال:** (خي/شي+ګ+ړَ) (اس - مو ، ج - ړې) (۱) نېکي - ښۀ سلوک - احسان - (۲) نفع - فائده - (۳) صفت - وصف - خوبي -

ـــــ **کول:** نېکي کول - احسان کول - د چا د پاره يا چا سره ښۀ کار کول -

ـــــ **موندل:** - فائده موندل - نفع حاصلول -

**ښيګڼه :** – (خي/شي+ګ+ڼ+ړَ) (اس - مو ، ج - ړې) (و------ ښيګړه)

ـــــ **وال:** (وا+ل) (و------ ښيګړ وال)

**ښئيل :** – (خَ/شَ+ئ+ل) (مص مت) (۱) ښودل - ښـوول - ورزده کـول - (۲) نخښـه پته ورکول - ورمعلومول - (۳) ښهل - عاق کول -

ـــــ **کول:** ښاينه کول - ورزده کول - تعليم ورکول -

دۀ په خپـله دا فتنې زده

که بد خوره ورته ښئيل که (خوشحال)

**ښـيلے :** – (خي/شي+لے) (اق - صف - مذ ، ج - لي) هغـه زوے چې مـور او پـلار ترې وېزاره شوي وي - ښهلال - عاق شوے -

**ښـېلي :** – (خې/شـې+لي) (اس - مـذ) (صـف - مـذ ، مـو - ه) جامـد - نـه وئـيلے کېدونکے

پـــه لـــمبه د ښکلي مخ لکه موم توئې شو

ولې زړۀ بـه مـې پـه صبر نۀ شـــي ښـيم (حسين)

**ښيمي :** – (خي/شي+مي) (اس - مذ) معيار - د اندازه کولو معيار -

څوک ئې لولي څوک ئې پمي

د هر چـا زار له خپله ښيمي

د هـر چـائې پـيالـه ورکـړه

پـه يـوه پـيالـه کـل يـمي (ارزاني)

**ښينځه :** – (خي/شي+ن+(د)+زَ) (اس - مو ، ج - ځې) مشهوره غټه ننکۍ - دُنبل -

**ښينزه :** – (خي/شي+ن+زَ) [اس صف - مؤ ، ج - زې]سبزه - شنيزه - لکه" ترلرې لرې ښينزه داسې ولاړه وه لکه زرغونې جامې په تن د خلګو لـوے بهير د پاليزو له څنګه ولاړ" -

**ښـئينه :** – (خَ/شَ+ئي+نَ) (حمص) (۱) ښودنه - ښوونه - څرګندوونه - ښـکار کوونه - (۲) ورزده کوونه - تعليم ورکوونه -

**ښينه :** – (خي/شي+نَ) (اس - مو ، ج - نې) د ښځې خور - خوشينه - (عموماً "ښينې" وائي)

**ښينۍ :** – (خي/شي+نَ+ی) [اس - مؤ] (و------ ښينه)

**ښينې :** – (خي/شي+نې) (اس - مو) د ښځې خور - خوشينه -

**ښبول :** – (خې/شې+ؤ+ل) (مص) تبرول - وررسول - ښوبول خلال د غاښ د نوم، پـه لاس پـه اوبـه ښـيـول د هـر انـدام دا پـه غسـل کښـې مسـتحب دي - (خبرالبيان)

**ښيون :** – (خَ/ش+يُو+ن) (ق ،ا س - مذ) لارښودنه - رهنمائي - هدايت -

ـــــ **کېدل:** - لار ښودنه کېدل - رهنمائي کېدل - هدايت کېدل -

**ښيونکے :** – (خَ/شَ+يُو+ن+کَے) (اس فا ، ع ، ج - کي) (۱) ښوونکے - ښودونکے - څرګندوونکے - ظاهروونکے - (۲) ورزده کوونکے - تعليم ورکوونکے -

**ښيونے :** – (خَ/ش+يُو+نَے) (اس فا ، ج - لي) ښودلو والـه - ښـيولو والـه - اسـتاد معلم

زه ښيونے يم د لارې

بل نوره په ما نشته (خوشحال)

**ښبوه :** – (خي/شې+وَ) (اس - مو ، ج - وې) (۱) ارائش - سنګار - ډول - سينګار - (۲) کبځ - نازنخره -

ـــــ **کول:** ناز و انداز کول - کبځ مکيځ کول -

هر زمان په نوي نوي غم اخته شوم

چـې تـل تـل نوې ښبوه کاول اشوبه (خوشحال)

ـــــ **ګر:** - (ګ+ر) (اس - مذ ، ج - ان) نازنخرې کوونکے - کبځ مکبځ کوونکے - معشوق - محبوب -

ـــــ **ګره:** - (ګ+رَ) (اس - مو ، ج - ګرې) د ښبوه ګر تانيث - معشوقه -

په هر ځاے چې ستا ثنا شي ښبوه ګرې

خـر مهـرې شي هلته دُر او مرغلرې (خوشحال)

**ښبيه :** – (خَ/شَ+ئ) (حمص) (و------ ښئينه)

**ښئېل :** – (خي/شې+ئي+ل) (و------ ښئيل)

◈◈◈

# ص

**ص :** – (ص+وا+د) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) د پښتو د الفاء ځلېرشتم توری (د عربي څوارلسم، د فارسي اولسم او د اردو شلم توری دی) دا توری اصلاً د عربي دی او صرف په هغو الفاظو کښې راځي کوم چې اصلاً د عربي ژبې وي - ددې توري غږ (اواز) په پښتو کښې نشته - ځکه عموماً د "س" په شان تلفظ کولے شي - د فارسي ځينې الفاظ کښې محض د معنو د التباس نه د بچ کېدو د پاره خا مخا د "س" په ځاے "ص" ليکلے شي - لکه "صد" چې اصلاً ص سره دے خو "سد" سره ئې التباس راځي - په پښتو ځينې خلق د "س" په شان د تلفظ په وجه د "ص" په ځاے "س" ليکي - لکه د صبا په ځاے سبا - د غږ پوهنې له کبله داسې ليک درست دے خو د روايت او د خواوشا نورو ژبو ليک دود او بيا په تېره تېره د قران د ليک دود په وجه عموماً داسې الفاظ په اصل (عربي) شکل کښې (ص) سره ليکلے کېږي -

(صرف عالمان په عربي عبارتونو کښې بالعموم او کله کله په پښتو کښې د عربي ددې توري اصل عربي تلفظ کوښښ کوي) - په ځينو ترکي الفاظو کښې هم راځي - ددې توري په نوم کښې په پښتو کښې سپکې شان بې حرکته واو سره "صواد" دے - (چې اصلاً دا د شونډو غونډونه ده) خو په عربي او نورو ژبو کښې ورته "صاد" وائي - د جمل په حساب ددې توري قيمت اتيا (۸۰) دے - شاعران ئې د معشوقې د سترګو د تشبيه د پاره استعمالوي-

**ص :** -(علامت) د "صفحه" مخفف دے - لکه مخ، ص ، د ص په شکل کښې هم ليکلے شي لکه وګوره ۱۰۲ -

**ص** :- (علامت - د ص+د) (علامت) (واله) وسلم مخفف دے - د "ص" په شکل کښې د حضور پاک صلعم د نوم نه وروستو ليکلے شي-

**ص** :- (علامت د صواد) مخفف دے - د "صداقت همراه" دا په افغانستان کښې د عزت يا خطان دے -

**ص** :- (ص+وا+د) (علامت) د "صحيح" د سر تورے دے - د صحيح د مخفف په طور راځي - عموماً "ص" ليکلے کېږي - (ا) که د يو طالب علم املاء يا د سوال جواب درست وي نو استاد پرې د "ص" نخښه ولګوي - (ب) د شاعر استاد په ښۀ شعر باندې هم دغه نخښه لګوي

**صابر :** - (صا+بِ+ر) (ع ـا س فا ـ ج ـ ان ، مو ـ ه)(۱) صبر کوونکے - زغمونکے - برداشت کوونکے - (۲) په کار کښې تادي يا جلتي نۀ کوونکے - (۳) د مشهور پيغمبر حضرت ايوب عليه السلام لقب دے -(۴) د نارينهٔ په نومونو کښې راځي -

**صابره** :- (صا+بِ+رَ) (اس مو ، ج ـ يې)(۱) د "صابر" تانيث دے - صبر کوونکې ښځه - زغمونکې ښځه - برداشت کوونکې ښځه- (۲) د زنانهٔ په نومونو کښې راځي -

**صابري** :- (صا+بِ+ري) (عف تر ـ اس ـ مو) (۱) صبر - صبر کوونه - (۲) صابر سره تعلق لرونکے -

**صابون** :- (صا+بُو+ن) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه)د سوډې او د مېدې وغېره اجزاؤ نه جوړ شوے هغه ټوس چکۍ چې جامې يا بدن وغېره پرې وينځلے شي - سابون -

—— **پز**:- (پ+ز) صابون ساز -

—— **پزي :**- (پَ+زي) (عف تر ـ اس ـ مو) د صابون جوړونه - صابون سازي -

—— **داني**:- (دا+ني) (اس ـ مو) د صابون د کښېښودو لوښے -

—— **ساز**:- (سا+ز) (عف تر ـ اس مذ ، ج ـ ان ـ مو ـ ه) صابون جوړوونکے-

—— **سازي**:- (سا+زي) (عف تر ـ اس ـ مو) د صابون جوړوونه - د صابون سازونه - په تجارتي پېمانه د صابون جوړونه -

—— **ور کول**:- (و—— صابون وهل)

—— **وهل** ، پرې:- په خېرنه جامه د وينځلو په وخت صابون مږل -

د —— **چکۍ**:- (چَ+کَ+ۍ) (عف تر ـ اس ـ مو) د صابون يوه قالبي ټوټه -

**صابونۍ** :- (صا+بُو+نَ+ۍ) (اس ـ مو) يو قسم متهيائي ده چې د ګوړې د جوړولو په وخت ټينګ شوې شربت کښې د کوچو وغېره په ګډولو جوړولے شي -

**صابي** :- (صا+بي) (س ـ مع) (۱) د پيغمبر صلعم په زمانه کښې ستاره پرست قوم (۲) بت پرست -(۳) خپل مذهب بدلوونکے -

**صاحب** :- (صا+حِ+ب) (ع ـ اس ، صف ، ج ـ آن/مو ـ ه) (۱) مالک څښتن - اقا

رحمان هسې و خپل يار بې حجت دے
لکه عذر چې صاحب ته غلام نۀ کا (رحمان بابا)

(۲) ملګرے - رفيق - (۳) لرونکے - واله - (د لاحقې په طور نورو الفاظو سره راځي - ډېر الفاظ د "واله" تر لاندې راغلي دي) -(۴) د احترام دپاره د مشرانو او عزتمندو خلقو د نوم نه وروستو ليکلے شي - (۵) افسر - د يوې محکمې يا دفتر مشر يا افسر په دې صورت کښې عموماً په بدل شکل کښې يعني "صېب" تلفظ کېږي - (اصلاً د پېرنګيانو په دور کښې هر پېرنګي د پاره به د "صېب" لفظ استعمالېده- وروستو دغه لفظ د هر افسر د پاره عام شو) - (۶) جي - جي - حضور - د افسر يا مشر سړي د اواز په جواب کښې وئيلے شي - ("صېب"تلفظ کېږي) - (۷) د افسر يا د کوم مشر سړي ته د خطاب په وخت وئيلے شي -

—— **اختيار**:- (اِ+خ+تِ+يا+ر) (عف تر ـ صف) د اختيار خاوند - واکمند - اختيار لرونکے

—— **اخلاق**:- (اَ+خ+لا+ق) (عف تر ـ صف) د ښو اخلاقو خاوند-

—— **ادراک**:- اِ+د+را+ک) (عف تر ـ صف) د عقل - پوهې - خاوند - پوهه - عقلمند

—— **استعداد**:- (اِ+س+تِ(ع)+دا+د) (عف تر ـ صف) د استعداد خاوند-

قابل ـ لائق

ـــــ **اعتبار**:ـ (اِ+عِ+ت+با+ر) (عف ـ صف) د اعتبار خاوند ـ معتبر ـ د عزت ښتن ـ (چې اعتبار پرې کولے شي)

ـــــ **اقبال**:ـ (اِ+ق+با+ل) (عف تر ـ صف) د اقبال خاوند ـ خوش بخته ـ بختور ـ د ښۀ قسم ښتن ـ

ـــــ **اقتدار**:ـ (اِ+ق+ت+دا+ر) (عف تر ـ صف) د اقتدار خاوند ـ د زور طاقت ښتن د اختیار خاوند ـ

ـــــ **انصاف**:ـ (اِ+ن+صا+ف) (عف تر ـ صف) د انصاف خاوند ـ منصف ـ منصف مزاج

ـــــ **اهتمام**:ـ (اِ+ه+ت+ما+م) (عف تر ـ صف) د اهتمام ښتن ـ اهتمام کوونکے ـ مهتمم ـ انتظام کوونکے ـ

ـــــ **بهادر**:ـ (بَ+ها+د+ر) (عف تر ـ صف) (۱) افسر ـ حاکم ـ (د پېرنګيانو په وخت کښې به هر پېرنګي ته په لیک کښې یا مخاطبه کښې دا الفاظ استعمالېدۀ ـ وروستو ئې د هر افسر دپاره استعمال شورو شو) ـ (۲) (طنزاً) هغې سړي ته وئیلے شي څوک چې د افسرانو په شان جامه اغوندي یا د هغوي په شان حکم چلوي.

ـــــ **تاج و تخت**:ـ (تا+ج+ت+خ+ت) (عف تر ـ صف) د تاج او د تخت خاوند یعني بادشاه

ـــــ **تدبیر**:ـ (ت+د+بي+ر) (عف تر ـ صف) د تدبیر ښتن ـ مدبر ـ ښۀ تدبیر کوونکے ـ

ـــــ **تصدیق**:ـ (ت+ص+دي+ق) (عف تر ـ صف) (۱) تصدیق کوونکے ـ هغه افسر چې د تصدیق کولو اختیار لري ـ (۲) نوټري ـ رجسټرار ـ (په عدالتونو کښې تسلیم شوے هغه عزتمند سړے چې د کاغذاتو وغیره تصدیق کولے شي) ـ

ـــــ **تمکنت**:ـ (تَ+م+کَ+نَ+ت) (عف تر ـ صف) د تمکنت خاوند ـ رعب واله ـ رعب داب لرونکے ـ

ـــــ **تمیز**:ـ (تَ+مي+ز) (عف تر ـ صف) تمیز واله ـ په ښه و بد کښې فرق کوونکے مهذب ـ شائسته ـ

ـــــ **جاه**:ـ (جا+ه) (عف ـ صف) د لوړ مقام خاوند ـ مرتبې واله ـ افسر ـ

ـــــ **جائداد**:ـ (جا+ئې+دا+د) (عف تر ـ صف) د جائیداد ښتن ـ د دفتر خاوند ـ زمکه کورونه وغیره لرونکے ـ مالداره د حېثیت خاوند ـ

ـــــ **جمال**:ـ (جَ+ما+ل) (عف تر ـ صف) د جمّال خاوند ـ ښکلے ـ ښائسته ـ ښائست واله ـ

ـــــ **جي**:ـ (جي) (اس مع) د نواب علي مردان خان لور او د امیر خان میر میران ماینه چې د هغۀ د مرګ نه وروستو د عالمګیر بادشاه په حکم ئې دوه کاله په کابل حکمراني وکړه او بیا حج له لاړو ـ

ـــــ **جېش**:ـ (جے+ش) (عف تر ـ صف) د جېش خاوند ـ د لښکر ښتن ـ سر لښکر ـ جرنېل ـ

ـــــ **حق**:ـ (حَ+ق) (عف تر ـ صف) د حق ښتن ـ حقدار ـ

ـــــ **حېثیت**:ـ (حے+ثي+يَ+ت) (عف تر ـ صف) د حېثیت خاوند ـ مالداره ـ دولتمند ـ شته من ـ

ـــــ **خانه**:ـ (خا+نَ) (عف تر ـ صف) د کور خاوند ـ کوربه ـ

ـــــ **داختیار**:ـ (دَ+اِ+خ+تِ+یا+ر) (عپ تر ـ صف) د اختیار خاوند ـ اختیار لرونکے

ګــوره هسې کــردګار دے رب زما
چې صاحب د کل اختیار دے رب زما (رحمان بابا)

ـــــ **دل**:ـ د+ل) (عف تر ـ صف) (۱) د زړۀ خاوند ـ د جرأت خاوند ـ زړۀ ور ـ (۲) پرهېزګاره ـ متقي ـ

یا جهان ګشته وے پېښېدے په صاحبدلو
هـر ځاے شرف له ښۀ دیداره ریاکان وے (حافظ)

(۳) روښانه زړۀ لرونکے ـ دانشمند ـ دانا (۴) د ژوندي زړۀ خاوند ـ خوش طبع

ـــــ **دماغ**:ـ د/دَ+ما+غ) (عف تر ـ صف) د دماغ خاوند ـ دماغ واله ـ مغروره کبرجن

ـــــ **ذوق**:ـ (ذو+ق) (عف تر ـ صف) د ذوق خاوند ـ ذوق لرونکے ـ ښۀ مذاق یا طبع لرونکے ـ شوقین ـ

ـــــ **رائے**:ـ (را+ئے) (ف تر ـ صف) (۱) د صحیح راے خاوند ـ درُسته راے لرونکے ـ د راے ورکولو اهلیت لرونکے ـ عقلمند ـ پوهه ـ (۲) د بو علي سینا لقب ـ

ـــــ **رسالت**:ـ ر+سا+لَ+ت) (عف تر ـ صف) د رسالت ښتن ـ رسول ـ پیغمبر ـ حضور پاک صلعم ـ

ـــــ **روایت**:ـ (ر+وا+يَ+ت) (عف تر ـ صف) د روایت ښتن ـ هغه کس چې د روایت کولو اهلیت لري ـ معتبر ـ اعتباري ـ

ـــــ **زادګان**:ـ (۱) د "صاحب زاده" جمع ده ـ (وـــ صاحبزاده) (۲) د کوم بزرګ یا د نېک سړي اولاد د نوسو کړوسو د عزت د پاره صاحبزاده ګان وائي ـ لکه څنګه چې د "میاګانو" لفظ استعمالېږي ـ

ـــــ **زادګی**:ـ (زا+د+ګ+ی) (فپ تر ـ مو) (۱) د صاحب زاده تانیث دے ـ (۲) د پښتنو زنانه ؤ دنوم په طور راځي ـ

ـــــ **زاده**:ـ (زا+دَ) (اس ـ مذ ، ج ـ ګان) (۱) د صاحب زوے د مالک زوے ـ مجازاً د چا لوے سړي یا د پیر وغیره زوے یا اولاد ته وئیلے شي ـ (۲) د چا د عزت د پاره "زوے" ځاے وئیلے شي ـ لکه دا د فلاني صاحبزاده دے ـ

ـــــ **زبان**:ـ (زَ+با+ن) (عف تر ـ صف) د ژبې (ځبې) ښتن ـ جب (ژب) پوهان اهل زبان

ـــــ **الزمان**:ـ (بُ+ز+زَ+ما+ن) (ع تر ـ صف) د زمان ښتن ـ مجازاً امام مهدي علیه السلام ـ

ـــــ **زماني**:ـ (زَ+ما+ني) (اس ـ مع) د دهلي د مغل بادشاه محمد شاه لور وه چې پښتون بادشاه احمد شا ابدالي ته وادۀ شوې وه ـ

ـــــ **سعادت**:ـ (سَ+عا+دَ+ت) (عف تر ـ صف) د سعادت ښتن ـ سعادت واله ـ خوش قسمته ـ بختور ـ

ـــــ **سلامت**:ـ (سَ+لا+مَ+ت) (عف تر ـ صف ـ اس) سترګې مشي ـ خوار مشي ـ مجازاً پېژندګلو ، پېجندګلو ـ شناخت ـ

ـــــ **سلامت لرل**:ـ د سترګې مه شې خوار مه شې ، تعلق لرل ـ پېژندګلو (پېجندګلو) لرل ـ شناخت لرل ـ سر سري ملاقاتونه کېدل ـ (یعني جور (ژور) تعلق یا دوستي نۀ لري ـ

ـــــ **سلیقه**:ـ سَ+لي+قَ) (عف ـ صف) د سلیقې ښتن یا مېرمن ـ سلیقې واله ـ تمیز واله ـ مهذب ـ

ـــــ **شان شوکت**:ـ (شا+ن+شَو+کَ+ت) (عف تر ـ صف) شان شوکت کوونکے ـ د بدبې واله ـ رعب داب واله ـ

ـــــ **طبع**:ـ (طَ+بَ+ع) (عف تر ـ صف) (۱) د ښې طبعې یا طبیعت خاوند ـ (۲) ذهین ـ قابل ـ

ـــــ **طمع**:ـ (طَ+مَ+ع) (عف تر ـ صف) طمعې واله ـ طمع لرونکے ـ لالچي ـ

ـــــ **ظرف**:ـ (ظَ+ر+ف) (عف تر ـ صف) د لوے ظرف (لوښي) واله د لوے زړۀ ښتن ـ لوے زړے ـ لوے حوصلې یا زغم واله ـ

ـــــ **عدالت**:ـ (عَ+دا+ل+ت) (عف تر (صف) د عدالت خاوند جج مجسټرېټ ـ

ـــــ **عدل**:ـ (عَ+د+ل (عف تر ـ صف) د عدل خاوند ـ انصاف کوونکے ـ عادل ـ منصف ـ

ـــــ **عصا**:ـ (عَ+صا) (عف تر ـ صف) عصا (همسا) خاوند ـ مجازاً حضرت موسیٰ علیه السلام ـ

ــــ **غرض**:- (غَ+رَ+ض) (عف تر - صف) (۱) د غرض خاوند - غرضمند - (۲) خود غرضه - غرضي -

ــــ **غیرت**:- (غې+رَ+ت) (ف تر - صف) د بسترخاوند - مجازاً ناروغه - ناجوړه - بیمار

ــــ **فهم و فراست**:- (فَ+ه+مو+فَ+را+سَ+ت) (عف تر - صف) پوهه او عقل لرونکې - پوهه - هوښیار - عقلمند -

ــــ **فیل**:- (فې+ل) (عف تر - اس) د هاتي خاوند - هاتي واله - مراد ترې ابرهه دے چې د یمن بادشاه وۀ - د خانه کعبې د ورانولو دپاره ئې په مکّه معظمه حمله کړې وه خو خدا ے پاک د طوطا ګرګو / خرڅکیو په لاس یا د چیچک په مرض هلاک کړ -

ــــ **قران**:- (ق+را+ن) (ف تر - صف) (۱) هغه سړے چې د پېداوښت په وخت ئې د زحل او مشتري ستوري په برج کښې یو ځا ے شوے وي - داسې سړے د ډېر بخت او اقبال خاوند ګڼلے شي - (۲) د تېمور لقب - ځکه چې دے هم په دې وخت کښې پیدا شوے وۀ - (۳) د حضور پاک صلعم لقب - (۴) هغه بادشاه ته وائي ځوک چې د څلوېښتو کالو نه زیاته بادشاهي وکړي -

ــــ **قسمت**:- (ق+س+مَ+ت) (عف تر - صف) د قسمت خاوند - د ښۀ قسم واله - بختور - خوش قسمته -

ــــ **قلم**:- (قَ+لَ+م) (ف تر - اس - مذ) د قلم خاوند - قلم لرونکے - مجازاً لیکوال - شاعر - مصنف -

ــــ **قوت**:- (قُو+وَ+ت) (عف تر - صف) د قوت خاوند - زور طاقت واله -

ــــ **کتاب**:- (کي/ک+تا+ب) (عف تر - صف) د کتاب خاوند - کتاب واله - هغه پېغمبر چې د اسمانه پرې کتاب نازل شوے وي -

ــــ **کرامت**:- (کَ+را+مَ+ت) (عف تر - صف) د کرامت خاوند - بزرګ ولي الله -

ــــ **کرم**:- (کَ+رَ+م) (عف تر - صف) د کرم څښتن - سخي - سخاوت کوونکے -

ــــ **کمال**:- (کَ+ما+ل) (عف تر - صف) د کمال خاوند - کمال لرونکے - کامل - عارف

ــــ **کول**:- مالک کول - اقا ګرځول - بادار کول -

نورو چارو ته څۀ ګورې دا ګوره
چې صاحب د مسلمان کائد کافر ، زر (خوشحال)

ــــ **لولاک**:- (لو+لا+ک) (عف تر - صف) د لولاک خاوند - حضور پاک صلعم -

ــــ **محفل**:- (م+ف+ل) (عف تر - صف) د محفل یا د مجلس خاوند - هغه کس چې د چا په کور کښې محفل لګېدلے وي -

ــــ **مرام**:- (مَ+را+م) (عف تت - صف مذ) د مرام څښتن - مقصد حاصلوونکے -

ــــ **مروت**:- (مُ+رو+وَ+ت) (عف تر - صف) د مروت خاوند - مروت واله -

ــــ **مقدور**:- (مَ+ق+دُو+ر) (عف تر - صف) د مقدور یعني د قدرت څښتن - طاقت لرونکے - مالدار - شته مند -

ــــ **من**:- (مَ+ن) (عف تر - کلمه ندا) الفاظ کوم چې مخاطب د پاره د عزت په طور استعمالېږي - زما صاحبه ! جناب -

ــــ **منصب**:- (مَ+ن+صَ+ب) (عف تر - صف) د منصب خاوند - منصب لرونکے - د مرتبې یا عهدې خاوند - افسر -

ــــ **نار**:- (نا+ر) (عف تر - صف) د نار (اور) څښتن - د "اصحاب النار" واحد دے - دوزخي - جهنمي -

ــــ **نسب**:- (نَ+سَ+ب) (عف تر - صف) د سب خاوند - لوے نسب یا خاندان واله -

ــــ **نصیب**:- (و ــــ صاحب قسمت)

ــــ **نظر**:- (نَ+ظَ+ر) (عف تر - صف) د نظر خاوند - هوښیار - پوهه - لوے فکر لرونکے -

زر په غړ کښې پروت قدر ئې هېڅ نۀ ئې زده شي
چا د زر قیــــمت زده ، جــــوهري صاحب نظر

ــــ **وضع**:- (وَ+ضَ+ع) (عف تر - صف) د وضع څښتن - باوضع - وضعدار -

ــــ **وقار**:- (وَ+قا+ر) (عف تر - صف) د وقار خاوند - وقار لرونکے - دروند - رعب داب لرونکے -

ــــ **وقوف**:- (وُ+قُو+ف) (عف تر - صف) وقوف لرونکے - عقلمند - هوښیار -

ــــ **هنر**:- (هُو/هُ+ن+ر) (عف تر - صف) د هنر خاوند - هنر لرونکے - هنر مند -

**صاحبان** :- (صا+حِ+با+ن) (عف - تر - اس - ج) د "صاحب" جمع ده - د جمعې اسمونو سره د عزت په طور استعمالېږي - لکه استاذان صاحبان! ډاکټران صاحبان -

**صاحبانو** :- (صا+حِ+با+نُ) د "صاحبا" اضافي یا مجروري وغېره تصغیر شوے شکل دے - عموماً ګېو کسانو ته د مخاطبې په وخت د عزت په توګه وئیلے شي -

**صاحبانه** :- (صا+حِ+با+نَ) (عف - صف) (۱) د صاحبانو سره متعلق - صاحبانو ته منسوب - (۲) د صاحبانو (افدرانو) په شان د افسرانو په انداز -

**صاحب جان** :- (صا+حِ+ب+جا+ن) (اس مع) داد اکاخېلو ځانګه ده او اکاخېل افریدي دي بیاد صاحب جانو ځانګې سمل او کمال خېل دي -

**صاحب خان کور** :- (صا+حِ+ب+خا+ن+کو+ر) (اس مع) د هتي کور ځانګه ده - (او هتي کور ، محمد خان کور ، برهان خېل ، مهمند دي -

ــــ **خېل**:- (خې+ل) (اس مع) د خلي خېلو ځانګه ده او خلي خېل ، بنګش خېل ، ابراهیم خېل ، استانی ، شبي خېل ، علي زئ ، محسود دي

**صاحب خېل** :- (صا+حِ+ب+خېل)

**یا صب خېل** :- (صَ+ب+خېل) (اس مع) دا د شېخئیو ځانګه ده او شېخي ، اني ، بړی ، زخاخېل ، افریدي - د صاحب خېلو یا صبب خېلو ځانګې دا دي - فتح خېل صاحب خېل او کتیه میر خېل -

**صاحب خېل** :- (ددغه) (اس - مع) د صب خېلو ، صاحب خېلو ، وړه ځانګه ده او صاحب خېل ، شېخي ، اني ، بړی ، زخاخېل ، افریدي دي -

**صاحب خېل** :- (ددغه) (اس مع) د عمر خان خېل ځانګه ده او عمر خان خېل ، علي شېرزئ ، لشکر زئ ، اورکزي دي -

**صاحبزاده** :- (صا+حِ+ب+زا+دي) (اس - ج - (د) ګان) هغو عالمانو او پیرانو اولاد ته وئیلے شي ځوک چې د خپل عبادت او ریاضت له کبله ډېر مشهور وو - په دوي کښې ځینې کورنۍ ډېرې مشهورې دي - د دوي اولاد ته احتراماً صاحبزادګان (واحد - صاحبزاده) وئیلے شي -

**صاحب کور** :- (صا+حِ+ب+کو+ر) (اس مع) دا درمه کور ځانګه ده او (درمه کور ، شاه منصور خېل ، ترک زئ ، مهمند دي -

**صاحبه** :- (صا+حِ+بَ) (عف تر - مو ، ج - یې) (۱) د "صاحب" تانیث دے - (۲) (و ــــ صاحب ۱ ۲ ۴)(۲) فشار په "ورځ" باندې د "صاحب" اضافي یا مجروري وغېره حالت کښې بدل شوے شکل - (۳) (و ــــ صاحب ۴ ۲ ۷) (۴) سهېلۍ (۵) ښځه - بي بي -

**صاحبي** :- (صا+حِ+بي) (اس - مو) د صاحب کار - مشري - اقائي -

ــــ **کول**:- اقائي کول - افسري کول - باداري کول -

که د تخت د پاسه ناست وي صاحبي کا
د درویش په زړۀ کښې هېڅ نۀ وي هــــوا (خوشحال)

**صاحبي** :- (صا+حِ+بي) (صف) د انګورو (کور) یو قسم دے -

**صاحبیت** :- (صا+حِ+بي+یَ+ت) (اس - مو) صاحب کېدنه - د صاحب کېدلو حالت - د افسرانو نقل یا پېښې -

**صــاد** :- (ص+وا+د) (ع ، اس - مذ ، ج - ونه) د "ص" د شکل ، توري نوم ،

(و----"ص")

**---- کول**:- تصدیق کول-صحیح تسلیمول-(اصلاً د مکتب اصطلاح ده-چې د چا املاء درسته وي نو استاد پرې "ص" یا "ولیکي)-

**صاد** :- (سا+د) (صف) د غل په مقابله کښې ساد-د ښو اخلاقو خاوند نېک-

نېک منزل به ئې صبا گوره څوک ملـۀ وي
نه پـوهېږم چې صاد وي کـه به غلـۀ وي (حمید)

**صادر** :- (صا+د+ر) (ع-اس فاع) (۱) جاري-نافذ-واقع کېدونکې-ظاهرېدونکې-راتوونکې-(۲) د یو ځای نه بهر راتلونکې-بهر-(ملک) ته تلونکې-ایکسپورټ

**---- کول**:- واقع کول-نافذ کول-جاري کول-لکه: حکم صادر کول-

**---- کېدل**:- واقع کېدل-جاري کېدل-نافذ کېدل-

پاکیزه مسلمان برېښي دور لـه نهي
ناگاه کفر ته نزدې کار تر صادر شي (حافظ)

**حکم ---- کول**:- (حُ+کُ+م) حکم نافذ کول-امر کول-حکم جاري کول-

**حکم ---- کېدل**:- (حُ+کُ+م) حکم جاري کېدل-د حکم اجراء کېدل-امر کېدل-حکم نافذ کېدل-

**غلطي ---- کېدل**:- (غَ+لَ+طي) غلطي کېدل-خطای کېدل-

**فېصله ---- کول**:- (فې+صَ+لَ) د عدالت یا د قاضي یا د بېنچ وغېره د څۀ معاملې په حقله خپله فېصله اورول-

**فېصله ---- کېدل**:- د څۀ مقدمې یا جگړې په حقله د عدالت یا د قاضي یا د جرگې د طرفه د فېصلې حکم جاري کېدل-

**گناه ---- کېدل**:- (گُو/گُ+نا+(ه) د گناه کار کېدل-قصور کېدل-

**صادرات** :- (صا+د+را+ت) (ع-اس-ج) بهر ملکونو ته مال لېږنه-ایکسپورټ-

**صادراتي** :- (صا+د+را+تي) (عف تر صف) بهرني ملکونو ته د مال لېږلو سره متعلق-د ایکسپورټ سره متلعق-

**---- اقلام**:- ایکسپورټ کونکي ملکونه-

**---- شرکت**:- (عف تر-اس-مذ) د یکسپورټ شیرکوالې-

**---- مقدار**:- (عف تر-اس-مذ) د ایکسپورټ (د مال) اندازه-

**---- مواد**:- (عف تر-اس-مذ) د ایکسپورټ سامان-

**صادرول** :- (صا+د+رَ+وُ+ل) (مص مت) (و------ صادر کول)

**صادروونکې** :- (صا+د+رَ+وؤ+ن+کې) (اس-فا، ج-کي) واقع کوونکې-جاري کوونکې-بهر ته رالېکونکې-

**صادره** :- (صا+د+رَ) د صادر مؤنث-بهر ملک ته لېږنه-ایکسپورټ لکه د صادرې او د وار دې کتاب-

**صادرېدل** :- (صا+د+رې+د+ل) (مص لا (و---------- صادر بدل

**صادرېدنه** :- (صا+د+رې+د+نَ) (حمص) بهر ته راوتنه-جاري کېدنه-واقع کېدنه-

**صادرېدونکې** :- (صا+د+رې+دُو+ن+کې) (اس-فا-ج-کي) بهر ته راوتونکې-واقع کېدونکې-جاري کېدونکې-

**صادرېدۀ** :-(صا+د+رې+د) (حمص) صادر کېدنه-نافذ کېدنه-جاري کېدنه-واقع کېدنه-ایکسپورټ کېدنه-بهر نه ملک ته لېږلې کېدنه-

**صادق** :- (صا+د+ق) (ع-اس فا، ج-آن) (۱) رېښتـــــونې-رښتــــتیني-رښتیاویونکې

بار ئې نۀ وینم د ځان په شان عاشق بل
په تـولي د عاشقانو کښې صادق بل (عبدالعظیم)

(۲) د امام جعفر رضي الله عنه دے-(امام محمد باقر بن امام زین العابدین امام حسین رضي الله عنه) (پیدائش ۸۳ ه او وفات ۱۴۸ ه)(۳)

یو معنٰی په بل کوم څیز درست راتلنه-چسپان کېدنه-

**---- دمېدل**:- سحر کېدل-د سحر رڼا ښکاره کېدل-صبح صادق کېدل-

شپه د هجران اوږده شوه صادق نه دمېږي
چې تیارۀ لرې کا رڼا په کور و کلي راشي (حافظ)

**---- راتلل**:- یوه معنٰی په بل کوم څیز یا بني ادم درسته راتلل-چسپان کېدل-

**---- القول**:- (قُ+ل+قَو+ل) (ع تر-صف مذ، مو-ه) (۱) د خپل قول رښتونکې-د وینا رښتونې-(۲) خپل لوظ پوره کوونکې-

**---- الوعد**:- (قُ+ل+وَ+ع+د) (ع تر-صف) د وعدې رښتونې-په لوظ قول ټینگ

**صادقانه** :- (صا+د+قا+نَ) (عف تر-صف) په رښتیا انداز-په رښتیا-

**صادق خېل** :- (صا+د+ق+خېل) (اس مع) د معروف خېلو څانگه ده او معروف خېل، بسي خېل، کمال خېل، صاحب جان، اکا خېل، افریدي دي-

**صادق زئ** :- (صا+د+ق+زَ+ئ) (اس مع) دا د حمزه زئیو څانگه ده او حمزه زي، ببل خېل، موسٰی خېل دي-

**صادق زئ** :- (ددغه) (اس مع) دا د حسین زئیو همسایه دي-د کاکړو په سیمه-

**صادقي** :- (صا+د+قي) (اس-مو) رښتیاوالې-رښتینتوب-

**صارم** :- (صا+ر+م) (ع-اس فا، مذ، ج-ان، مو-ه)غوڅوونکې-پرېکوونکې-پرېوکوونکې-

**صاع** :- (صا+ع) (ع-اس-مذ، ج-ونه) (۱) د یوې پیمانې نوم دے چې د څلورو "مدۀ" برابر وي او یو مُد د ۱۳ رتل برابر وي-(۲) ۲۳۴۷ تولو یو وزن-

**صاعد** :- (صا+ع+د) (ع-اس فا-ج-ان) بره ختونکې-په بره تلونکې-په بره تلونې (عموماً د (سا+ئ+د) په شان تلفظ کېږي)-

**---- کېدل**:- ختل-بره کېدل-

کریمان کـه تـنزل وکـړي لـه جـاهـه
بیا صاعد د بخت دوست په سنابر شي (حافظ)

**صاعقه** :- (صا+ع/ئي+کَ) (اس-مو، ج-قې) د اسمان بجلي-تندر-

لـه ازاره چا بازار موندلې نۀ دے
اه فریاد د زیر د ستانو صواعق دي (حافظ)

**---- بار**:- بجلي وروونکې-تندر وروونکې-تندر راغورځوونکې-

**---- باري**:- بجلي ورۀنه-تندر راغورځونه-

**صاف** :- (صا+ف) (ع-صف، مذ، مو-ه) (۱) صفا-پاک-پاکیزه-(۲) هغه څیز چې په کښې خیره یا گډون نۀ وي-خالص کره-

عارف یم که انصاف یم پروت و درته د صراف یم
دُر شـبـه ښـکـــاره وي جوهري قیمت شناس ته (حافظ)

(۳) بې داغه-(۴) صفا-د سر سر شراب-د دُر په مقابله کښې چې د تل خبرنې حصې ته وائي-

صاف و درد واړه وړومنو اندانو نوش کړۀ
زمــــا وار نوبت پـــــه تشه خم خانه دے (حافظ)

**---- انکار کول**:- صفا انکار کول-بالکل انکاري کول-

**---- باطن**:- (با+ط+ن) (عف تر-صف، مذ، مو-ه) هغه چې باطن ئې صفا وي-صفا زړے-پاکه زړه واله-

**---- باطني**:- (با+ط+ني) (عف تر-اس-مو) د زړۀ صفای-سپین زړتوب-

**---- بیان کول**:- صفا بیان کول-سپینې خبرې کول-

**---- جواب**:- (جَ+وا+ب) (عف تر-اس، مذ، ج-ونه) (۱) ښکاره او سپین جواب-صفا جواب-(۲) عموماً د نفي په طور راځي-لکه صاف جواب ورکول-یعني ښخې انکار کول-

**---- دل**:- (دِ+ل) (ف تر-صف مذ، مو-ه) سپین زړے-صفا زړۀ واله-

**ـــــ دلي:-** (عف تر -اس-مو) صفا زړۀ والے -سپین زړتوب -د زړۀ صفا والے -

**ـــــ شفاف:-** (سَ+فا+ف) (عف تر -صف) داسې صفا چې اورې پورې په كښې ښكاري -(لكه اوبۀ يا ښيښه) -

**ـــــ صاف:-** صفا صفا -رښتيا رښتيا -

**ـــــ طينت:-** (طي+نَ+ت) (عف تر -صف) د صفا زړۀ خاوند -د صفا خوي خصلت څښتن

**ـــــ كول:-** (۱) صفا كول -پاكول -(۲) د مرغو مارغانو ګېډه صفا كول -مرغو مارغانو له سپک جلاب وركول -

چوزهاله صاف كړے بويه چې خربه وي
د صافئ تكليــــف ئې واخله لـــه لاغره (خوشحال)

**ـــــ ګېډل:-** صفا كېدل -صافېدل -خېرې وتل -سپينېدل -

**ـــــ ګو:-** (ګو) (ف تر -صف) صفا ويونكے -رښتيا ويونكے -سپين ويونكے -

**ـــــ ګوى:-** (ګو+ى) (عف تر -اس-مو) صفا وينا -سپينه خبره كوونه -سپينه وينا

**ـــــ مېدان:-** صفا مېدان -سپين مېدان -

**ـــــ نه وئيل:-** صفا نه وئيل -سپينه خبره نۀ كول -

**ـــــ وئيل:-** صفا وئيل -سپينه خبره كول -

**صافول :-** (صا+فَ+ؤ+ل) [مص مت] صفا كول -صفا كول -خېرے لرې كول -

**صافي :-** (صا+فِي) (اس-مو ، ج-ګانې) (۱) هغه كپړه چې نور څيزونه پرې صفا او پاكيزه كولے شي -جارن -(۲) د څۀ مائع څيز د چاڼولو كپړه -چاڼ -

**صافي :-** (صا+فِي) (عپ -اس-مو) صفاى -صفا كېدنه پاكوونه -

د شنګ زنګ د ديقين په صيقل دور كا
په صــــافئ د رښا تــوره د فــولاد شي (حافظ)

**صافي :-** (صا+فِي) (عف تر -اس) د مرغو د ګېډې صفا كوونه -د مرغو مارغانو جلاب

چوز هاله صاف كړے بــويه چې فربه وي
د صـــافئ تكليف ئــــې واخله له لاغره (خوشحال)

**صافي :-** (صا+فِي) (ع-صف) صفا -بې ملاوټه -چې كوټ په كښې نۀ وي -

ښۀ مهري ياران د مجلس زبب صافي د زړونو
بند ئې په تاريک خالي مصدر د ښلتانـۀ كا (حافظ)

**صافي :-** (صا+فِي) (اس مع) د پښتنو يوه ډېره لويه او بهادره قبيله ده -ځينې وائي چې غورغښت پښتانۀ دي او د داني د يوې څانګې پانيو يا پيښو سره تعلق لري او د ځينو خيـال دے چې دا اصـلاً قنـدهاريان دي -د صافيانو دولس زره كوره ، د خيبر پښتونخوا قطب طرف تـه د سوات باجوړ نه واخله تر لغمانه او تګاؤ پورې خوارۀ دي -زيات تر د سور كمر خواؤشا كښې مېشتۀ دي -د سوات اخون هم دې قبيلې سره تعلق لري -د صافيانو څلور لوے لوے ښاخونه دي قندهاري ، مسعود ، ګُربز او ودر -

**صافي :-** (صا+فِي) (اس مع) دا د پـه ژوب او سبي كښې اوسي -خيـال دے چې دا صافيان برنو صافيانو سره تعلق لري -

**صافېدل :-** (صا+فې+د+ل) (مص لا) صفا كېدل -پاكيزه كېدل -د دوړو يا خېرو وغېره نه صفا كېدل -دوړې -خيرې وغېره لرې كېدل -

**صافېدنه :-** (صا+فې+د+نَ) (حمص) صفا كېدنه -پاكېدنه -پاكيزه كېدنه -

**صافېدونكے :-** (صا+فې+دُو+ن+كَے) (اس-فا ، ج-كي) صفا كېدونكے -پاكيزه كېدونكے -د دوړو خيرو وغېره نه پاكېدونكے -

**صافوار :-** (صا+فُو+را) (اس مع) صفواره -صفوره -د حضرت موسىٰ عليه السلام بي بي

**صـــاقل :-** (صـــا+قِ+ل) (ع-اس-فـــاع-ج-ان ، مـــو-ه) صـــيقل كـــوونكے -مانجوونكے -سپينوونكے -

**صالح :-** (صا+لِ+ح) (ع-اس-فاع-ان/ين) نېک -ښۀ -نېک او ښۀ كارونه نۀ كوونكے -نېكو كار -

غم كړه د دراز سفر كوتاه اميد لره عمره
دا اولى خصلت د صالحانو اولنـو دے (حافظ)

**صالح عليه السلام :-** (صا+لِ+ح) (اس مع) حضرت صالح عليه السلام -د يو پيغمبر نوم -چې ثمود نوم قوم ته د نصيحت د پاره لېږلے شوے وۀ -يوه اوښه ورله په طور د نخښې يا معجزې وركړے شوے وه -دغې قوم دا اوښه ووژله او د بيا د خداے پاک عذاب پرې نازل شو -

خالق دې هېر شو چې مخلوق ازاروې ښباكه
د صالح اوښه قتلوې ، عذاب پخپله غواړې (حافظ)

**صالحات :-** (صا+لِ+حا+ت) (ع-اس-ج) د "صلحه" جمع ده -نېک كارونه -

**صالح خېل :-** (اس-مع) د شنكي خېلو څانګه ده او شنكي خېل ، ښبكي ، حسوخېل ، ملي زاد داوړ دي -

**صالح زئ :-** (صا+لِ+ح+زَ+ئ) (اس مع) دا د كوشي څانګه ده او كوشي ، خجک ، پني دي -

**صالح زئ :-** (ددغه) (اس مع) دا د علي زئيو څانګه ده او علي زئ ، د نصرت زئ ، اچک زئ ، ابدال ترين دي -

**صالح زئ :-** (ددغه) (اس مع) دا د پاني زئيو څانګه ده او پاني زئ ، هارون خېل ، سناټيه ، كاكړ دي -

**صالح زئ :-** (ددغه) (اس-مع) دا د سوډيو څانګه ده چې پني دي -

**صالح زئ :-** (ددغه) (اس-مع) دا د ركهنوالو څانګه ده چې لوني دي بابل زئ د صالح زئيو څانګه ده -

**صالح كور :-** (صا+لِ+ح+كو+ر) (اس-مع) د خاني خېلو يوه څانګه ده او خاني خېل ، قاسم خېل ، تركري ، مهمند دي -

**صالح كور :-** (ددغه) (اس-مع) د رحمتـل كـور څانګه ده او رحمتـل كـور ، كدى كور ، د ګنډاؤ حليم زي ، مهمند دي -

**صالحه :-** (صا+ل+حَ) (صف مو ، ج-جې) د صالح تانيث دے -نېكه ښځه -نېک عمله

**صالحين :-** (صا+لِ+حي+ن) (ع-ا س صف-ج) د "صالح" جمع ده -صالحان -صالح (نېک) خلق -

**صالون :-** (صا+لو+ن) (انګ -ع تر -اس) سالون -كمره -كوټه -هال -

**صامت :-** (صا+مِ+ت) (ع صف-مذ ، مو-ه) (۱) چپ -خاموشه -غلے -ګونګے -(۲) هغه حرف چې څۀ حركت نۀ لري -

**صامته :-** (صا+مِ+تَ) (عف تر -اس-مو ، ج-تې) هغه حرف چې په لفظ كښې اواز نۀ وركوي -ساكت -ګونګ -

**صانع :-** (صا+نِ+ع) (ع-اس-مذ ، ج-ان ، مو-ه) صفت كوونكے -جوړوونكے -سازوونكے -كاريګر -

هم صانع دے د جمله ؤ مصنوعاتو
هم سامع د هسر ګفتار دے رب زما (رحمان بابا)

**ـــــ حقيقي:-** (حَ+قي+قي) (عف تر-اس-مذ) حقيقي پېدا كوونكے يا جوړوونكے مراد ترې خداے پاک دے -

**صاه :-** (صا+ه) (اس مع) دا د يحيىٰ زئيو څانګه ده او يحيىٰ زئ ، حسن خېل ، شېراني دي -

**صائب :-** (صا+ء+ب) (ع-اس فا-ج-ان) رسېدونكے -رسا -درست -ټيک -نېغ تلونكے -محكم -نېغ -

نائب دے د تقدیر د ما تدبیر په مصلحت کښې

نائب دے زما فکــــر د هر امر په اساس (خوشحال)

**ـــ رائے**:- (را+ئے) (عف تر-صف)د درستۍ او صحیح رائې خاوند - هوښیار - عقلمند

**صائم**:- (صا+ء+م) (ع-ا س-مذ ، ج-ان) روژه (روجه) نیوونکے - روژه (روجه) لرونکے - روژتي - روجتي - روژه دار -

یا صائم په ورځ قائم په شپه وے په محراب کښې

هـــر سحر ژړا زاري مې کړے دعا خوان وے (حافظ)

هم صائم وي د رمضان هم زکوٰت کاندي ادا (رحمان بابا)

**ـــ الدهر**:- (مُ+دَ+ه+ز) (ع تر-اس-صف)هغه کس چې تل ئې روژه (روجه) وي - تل روژي (روجي) نیوونکے -

**صاد**:- (صا+د) (اس ظ)(۱) راتلونکے ورځ - (ف-فردا) (ځینې خلق ئې س سره هم لیکي) - د صبا سړي به صبا سره ښخیږي - (متل)(۲) د سحر هوا - (۳) (ه) د نمرخاتۀ د طرفه چلېدونکې هوا-

**ـــ بېگاه**:- (بې+گا) (عپ تر-اس ظ)سحر او مابنام - مدام - همېش -

تل صبا بېگا بانـدي د اه دناد کیو

ووري سپین تور بري څۀ ښادي کا ایل نفاق (خوشحال)

**ـــ کبدل**:- سحر کېدل - که چرگ ووائي هم به صبا شي او که ونۀ وائي نو هم به صبا شي - (متل)

بانگ دے د چرگانو په هزار هیله صبا شو (خوشحال)

**ـــ نابل صبا**:- (فپ تر-اس مذ) کومه ورځ چې د صبا نه پس جخته راځي - (ف پس فردا ، ار پرسو)

**ـــ ناري**:- (نا+رې) (و---- صبا نهري)

**ـــ نهري**:- (نَ+ه+رَې) (فپ تر-س-ج-ي) د سحر د وخت خوراک - ناشته - سبازارے

**ـــ ورځ**:-(و+رَ+د)ز) (اس-مو ، ج-ځې) هغه ورځ چې به صبا راځي - صباني ورځ

**ـــ بېگا**:- (یا+بې+گا) (عپ تر-اس ظ) د صبا (سحر) په وخت یا د شپې په وخت - یعني په نن صبا کښې - ډېر زر -

دوران به وخاندي په تا بانـدې صبا یا بېگـا

نن چې په بل پورې خندا کړې سخرې پشارې (حافظ)

**ـــ بادې**:- (با+د) هغه باد چې د نمر خاتۀ د طرفه راځي - هغه هوا چې سحر وختي چلېږي او گلونه پرې غوړېږي -

**بل ـــ**:- (ب+ل) (عپ تر-اس ظ) د صبا نه پس ته راتلونکې ورځ - صبا نا بل صبا

**د ـــ ستوری**:- (س+ت+ر+گ) (اس-مع) د سحر ستورے -

**لابل ـــ**:- (لا+ب+ل) (فپ تر-اس-ظ)د "بل صبا" نه پس ته راتلونکې ورځ

**صباح**:- (صَ+با+ح) (اس-ظ)(۱) باد صبا - هغه باد چې سحر مال وربېږي (عموماً صبا لیکلے او وئیلے شي) -

رنگا رنگ غنچه دې وا کړه پــه چمن کښې

د خوشحال لـــــه یاره نـه راغلے صبــا ته (خوشحال)

(۲) سحر - صبح - سحر وختي - شین سهار -

**ـــ بېگاه**:- سحر مابنام -

پــه صباح بېگاه د عمر وغولتې

نۀ کړه نفس درسره ملا پېښو بسته (حمید)

**صباحت**:- (صَ+با+حَ+ت) (اس-مذ ، ج-ونه) ښائست - ښکلا - حُسن - ښیاېی - سپین رنگ والے -

**صباحه**:- (صَ+با+حَ) د صباح یو اضافي او مجروري وغیره مغیره شکل -

**تر ـــ**:- د سحر نه - د سحر څخه -

تل به وخت د نوبهار نـــۀ وي گلگشت کړه

پــــه دا بـاغ کښې تر صبا حه تر رواحه (خوشحال)

**تر ـــ تر رواحه**:- (رَ+وا+حَ) (۱) تر سحره پورې او تا مابنامه پورې ټوله شپه او ورځ (۲) تل - شامدام - همېشه -

تل به وخت د نوربهار نـه وي گلگشت کړه

پـــه دا بـاغ کښې لـــه صاحبـه تر رواحه (خوشحال)

**صباخېل**:-(صَ+با+خېل) (اس-مع) دا د کریم خېلو څانگه ده او کریم خېل ، د گړي خېل ، ډاچي خېل ، پلي خېل ، منزئ ، علي زئ ، محسود دي -

**صباغ**:- (صَ+ب+با+غ) (ع-اس فا ، ج-ان) رنگ ورکوونکے - رنگوونکے - رنگیز -

**صباغت**:- (صَ+با+غَ+ت) (ع-اس-مذ ، ج-ونه)د رنگ ورکولو - رنگریزي-

**صباني**:- (ص+با+نَ+ی) (اس-ظ-مو) د صبانے تانیث دے -

**صبانے**:- (صَ+با+نَے) (اس ظر-مذ ، ج-نې) د صبا ورځې سره تعلق لرونکے - د صبا -

**صباوت**:- (صَ+با+وَ+ت) (ع-اس-مذ) ماشوم والے - وړوکوالے -

**صباؤن**:- (صَ+با+ؤُ+ن) (اس-مذ) د سحر وخت - سحر وختي - د سحر رڼا کېدنه -

**ـــ کبدل**:- سحر کېدل - د سحر رڼا ښکاره کېدل -

**صبائي**:- (صَ+با+ئي) (فپ تر-اس ظر) د سحر وختي وخت - د سحر وخت - سحر مال - (په دې کښې اخري "ي" مزید علیه ده) -

**ـــ وختي**:- (و+خ+تي) (اس-ظ) سحر وختي - (د سحر هغه وخت چې نمر لانۀ وي ختلے

**په ـــ ورځ**:- (و+رَ+د)ز) (ف تر-اس ظ) صباله - صبا د ورځې - په صباني ورځ

**د ـــ په وخت کښې**:- د سحر په وخت کښې - سحر وختي -

**صبّاح**:- (صَ+ب+ب+ح) (ع-صف) ښکلے - ښایسته - غنم رنگے -

**صبح**:- (صُ+ب+ح) (ع-اس ظر) (۱) سحر - وختي - فجر - (۲) صفا - روڼ (عموماً د فارسي په مرکباتو کښې راځي) - لکه صبح رو - روڼ مخ واله -

**ـــ ازل**:- (اَ+زَ+ل) (۱) د ازل د ورځې سحر - (۲) هغه سرے چې غرمه نۀ لري -

**ـــ الست**:- (اَ+لَ+س+ت) (عف تر-اس) هغه سحر چې خداے پاک د بني ادمو د روحونو نـه تپوس کړے وۀ چې اَلَستُ بِرَبِکُمْ! (چې ایا زۀ ستاسو رب نۀ یم! او روحونو ورله جواب ورکړے وۀ چې "بلى" هو - (بې شکه ته زمونږ رب ئې) -

**ـــ پيري**:- (پې+ري) (عف تر-اس) د پیرۍ یعني د بوډاوالي شورو - (شروع) -

**ـــ جزا**:- (جَ+زا)------------------------

**ـــ حشر**:- (حَ+ش+ر)------------------------

**ـــ قیامت**:- (ق+یا+مَ+ت) د ټولو نـه د قیامت ورځ مراد ده - (ددغې ورځې غرمه او مابنام نشته) -

**ـــ دم**:- (دَ+م) (عف تر-ظر) د سحر وخت - سحر وختي - د صباوخت - د نمر د ختونه اول وخت - سباگون - سباوُون - روښانه خړه -

لکه با د صبحدم چې غنچه واکا

هسې رنگ دلکشا دے دا حدیث (رحمان بابا)

**ـــ روان**:- (رَ+وا+ن) (عف تر-اس) مراد ترې ځوانان دي-

**ـــ صادق**:- (صا+د+ق) (عف تر-اس ظ) رڼتونے سحر - روڼ گهیځ - سپین گهیځ - سپین سهار - (د شپې نه وروستو په اول خل چې په مشرق کښې کومه رڼا ښکاره شي - هغه لږ ساعت پس غیبه شي او بیا تیارۀ شي - دې ته صبح کاذب ، دروغجن سحر وائي - ددې نه پس بیا د رڼا څریکه - ښکاره شي - دا صحیح سحر وي - دې ته صبح صادق یا رڼتونے سحر وغیره وائي)

**ـــــ کاذب**:- (کا+ذِ+ب) (عف تر ا س ـ ظر) دروغجن سحر ـ د شپې نه پس چې کومه رڼا په اول ځل ښکاره شي هغې ته صبح کاذب وائي ـ ځکه چې دا زر غیبه شي ـ دا اصلي سحر نۀ وي ـ سور ګیځ ـ خر ګیځ ـ شنه خړه ـ

**ـــــ ګاه**:- (ګا+ه) (عف تر ـ ظرت) د سحر وخت ـ سحر مال ـ

تـوره شپه ده د غمونو
د ښادۍ صبح ګاه وے (خوشحال)

**ـــــ ګاهي**:- (ګا+هي) (عف تر ا س) (۱) د سحر وخت ـ سحر مال ـ (۲) د سحر د وخت سره متعلق ـ د سحر وخت ته منسوب ـ

**ـــــ وطن**:- (وَ+طَ+ن) (عف تر ـ اس) د وطن سحر ـ (دا ډېر خوږ او خوندور ګڼلے شي) ـ

**ـــــ ومسا**:- (حو+مَ+سا) (عف تر ـ ظرف) سحر او ماښام ـ ماد دے مدام ـ همیشه دے

**صبر** :- (صَ+ب+ر) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) (۱) زغم ـ برداشت ـ زغم کوونه ـ

که هر څو صبر کوم صبر مې نۀ شي
د اشنا د خـولې خبرې مې یادېږي (خواجه محمد بنګش)

(۲) ټینګ او سېدنه ـ استقلال ـ

**ـــــ ایوب**:- (اَ+ي+یُو+ب) (عف تر ـ اس ـ مذ) د حضرت ایوب علیه السلام صبر ـ په ایوب علیه السلام ډېر زیاتې سختې او تکلیفونه راغلي وو خو هغه د لوے صبر نه کار اخستے وۀ ـ ډېر لوے صبر ـ

**ـــــ جمیل**:- (جَ+مي+ل) (عف ترر ـ اس مذ) ښکلے صبر ـ جمال واله صبر ـ هغه صبر په کوم باندې چې بني ادم ته ثواب ملاوېږي ـ (عموماً د دعا په جملو کښې استعمالېږي) ـ

**ـــــ شکر**:- (شو/ش+ک+ر) (ع تر ـ ا س مذ) (۱) په تکلیف کښې د صبر نه علاوه د خداے پاک شکر هم ادا کول چې دا ستا ازمېښت دے یا دا چې ددې نه مې زیات تکلیف کښې وامه چوې ـ (۲) د څۀ څیز د حصول نه ببخي طمع پرې کول

**ـــــ کول**:- (۱) د څۀ تکلیف یا غم په موقع د زغم او د برداشت نه کار اخستل ـ (۲) په څۀ کار کښې د تادۍ او جلتۍ نه کار نۀ اخستل ـ

**ـــــ کېدل**:- (۱) زغم یا برداشت کېدل ـ (۲) د څۀ څیز د حصول نه طمع کول ـ

زړګیه صبر شه مه جاړه
جانان په غټو خلقو ځان حسابوینه (ټپه)

**ـــــ ناک**:- (نا+ک) (عف تر ـ صف ـ مذ ، مو ـ ه) صبر کوونکے ـ صبر واله ـ صابر ـ

**ـــــ وروُنے**:- (و+وُ+نے) صبر وروُنکے ـ هغه کس یا څیز چې سړے بې صبره کړي ـ

شـــور د ګړ ګړ په وګړي
صبر وروُنے شور و شر ئې (خوشحال)

**ـــــ وقرار**:- (رو/قَ+را+ر) (عف تر ـ اس) صبر او د زړۀ قرار ـ مطلب ډېر زیات صبر او خاموشي ـ د ډېر صبر په وجه زړۀ ته سکون یا تسلي ـ

**ـــــ وئیل**:- د صبر نصیحت کول ـ د صبر کولو تلقین کول ـ

څوک چې صبر ستا له مخه راته وائي
زمـــــا څۀ غرض له صبر و تحمله (خوشحال)

**د ـــــ شکر نه کار اخستل**:- ډیر زیات صبر او زغم نه کار اخستل ـ ګیله شکایت نۀ کول ـ چپ او غلې پاتې کېدل ـ شور فریاد نۀ کول ـ

**صبر** :- (صَ+ب/بِ+ر) (ع ـ اس ـ مذ) د یو دارو نوم دے ـ مصبر ـ چې ډېر تریخ وي ـ زنانه چې ماشوم د تي نه خلاصوي نو دا په تي ولګوي د ماشوم چې خولۀ ترخه شي نو ترې صبر شي ـ

**صبرول** :- (صَ+ب+رَ+ؤ+ل) (مص مت) (۱) برداشت کول ـ زغم کول ـ (۲) تسله ورکول ـ زړۀ جوړول ـ اطمینان ورکول ـ (۳) ځان ژغورول ـ ځان ساتل ـ

زما د پېغلو په شان یاره
زۀ به له تانه زړګے څنګه صبرومه (ټپه)

**ـــــ زړۀ**:- (۱) زړۀ له صبر ورکول ـ د څۀ مقصد د حاصلېدو نه طمع قطع کول ـ زړۀ منع کول ـ زړۀ ژغورل ـ

زما د پېغلو په شان یاره
زۀ به له تانه زړګے څنګه صبرومه (ټپه)

(۲) د څۀ غم یا تکلیف په موقع د تحمل او زغم نه کار اخستل ـ

**صبرېدل** :-(صَ+ب+رې+د+ل) (مص لا) (۱) برداشت کېدل ـ زغم کېدل (۲) ژغورل ـ

**صَبغ** :- (صَ+ب+غ) (ع ـ فع) رنګونه ـ رنګ ورکونه ـ

**صبغ** :- (ص+ب+غ) (ع ـ اس) رنګ ـ لون ـ

**صبغه** :- (ص+ب+غَ) (ع ـ مو) رنګ ـ لون ـ

**ـــــ الله**:- (تُ+ل/لا+ه) (ع تر ـ اس مذ) د الله پاک رنګ ـ مراد د الله پاک دین ـ

**صبوح** :- (صَ+بو+ح) (ع ـ اس) د سحر د شرابو وخت ـ سحر ـ

**صبوحي** :- (صَ+بُو+حي) (اس ـ مو) د سحر شراب ـ د سحر په وخت شراب څښنکل ـ

**صبور** :- (صَ+بو+ر) (ع ـ صف مذ ، مو ـ ه) ډېر زیات صبر کوونکے ـ ډېر زغم کوونکے ـ ډېر بردبار ـ

طبیبـــان وائـــي صبر دې دارو وي
خداے زمونږ فرقه پیدا کړه ناصبوره (رحمان بابا)

**صبوري** :- (صُ+بُو+ري) (ع ـ اس ـ مو) (۱) صبر کونه ـ (۲) په کار کښې تادي یا جلتي نه کوونه ـ (۳) تحمل ـ زغم ـ برداشت ـ

یا په زړه کښې مهر ځاے وې د بتانو
یائـــې ورکړې صبوري و عاشقانو (خوشحال)

**ـــــ راوړل**:- صبر راوړل ـ صبر کول ـ

ته چې ائینه په لاس کښې واخلـې حېرانېږې
زۀ لـــه کـــوم راوړم صبـــوري او تحمـل (رحمان بابا)

**ـــــ کول**:- صبر کول ـ زغم کول ـ برداشت کول ـ

یار مـــې کبرجن شو څۀ به ووائي و ماته
دروم صبوري ، کړه نور به څۀ وائیم و تاته (خوشحال)

**صبوري خېل** :- (صُ+بو+ري+خېل) (اس ـ مع) د ماني خېلو څانګه ده او ماني خېل ، محمد خېل ، اورک زي دي ـ

**صبي** :- (صَ+بي) (ع ـ اس) هلک ـ (دماشوم نه لوے)

**صبي** :- (صَ+بٰی) (اس ـ مذ) صبا ـ سحر ـ (لهجه) ـ

**ـــــ بیګي**:- صبا بېګا ـ سحر ماښام ـ هر وخت ـ مدام ـ

**صبیان** :- (ص+ب+یا+ن) (اس ـ ج) د صبي جمع دے ـ ډېر هلکان ـ

**صبیح** :- (صَ+بي+ح) (ع ـ صف مذ ، مو ـ ه) ښکلے ـ ښاېسته ـ سپین رنګے ـ سُور سپین

د تــوبې دریاب ئې تا لـــره پیدا کړ
د ګناه له تور یو ځان لکه صحیح کړه (خوشحال)

**صبیه** :- (صَ+بي+يَ) (ع ـ اس ـ مو ، ج ـ یے) د صبّي تانیث دے ـ وړه جینۍ ـ جینۍ ـ

**صـحاب** :- (صِ+حا+ب) (ع ـ اس ـ ج) د "صاحب" جمع ده ـ صاحبان ـ ملګري ـ دوستان ـ

**صـحابت** :- (صَ+حا+بَ+ت) (ع ـ اس ـ مـذ ، ج ـ ونـه) دوستـي ـ ملګرتیا ـ یاري ـ همراهي

**صحابه** :- (صح+حا+بَ) (ع ـ ج) (۱) صاحبان ـ یاران ـ دوستان ـ (۲) په اصطلاح

هغه بزرګان چې د رسول الله صلعم په خدمت کښې به حاضرېدل - د حضور پاک صلعم د مجلس وګړي - دې سره "د کرام" لفظ هم احتراماً راوستے شي.

**صحابي** :- (صَ+حا+بي) (ع - اس - مذ ، ج - ان) هغه کس چې مسلمان وي او د حضور پاک صلعم په خدمت کښې پاتې شوے وي او بيا مسلمان وفات شوے وي -

**صحابيه** :- (صَ+حا+بِي+يَ) (ع - اس - مو ، ج - ات) د "صحابي" تانيث دے - (و ----- صحابي)

**صحاح** :- (ص+حا+ح) (ع - صف) (۱) تن درسته - د صحيح جمع - د عېب نه پاک بې عېبه (۲) د عربئ د يو مشهور لغت نوم دے چې مصنف ئې "جوهري" وۀ -

**ـــــ سته**:- (س+ت+تَ) (ع - تر - مو) د حديث د شپږو کتابونو مجموعې ته وائي - د حديث په بې شمېره کتابونو کښې دا شپږ کتابونه صحيح يا بې عېبه ګڼلے شي - د کتابونه دا دي - بخاري شريف - مسلم شريف - ترمذي شريف - ابوداؤد شريف - ابن ماجه او نسائي شريف -

**صحاف**:- (صَ+ح+حا+ف) (ع - اس فاع ، ج - ان) کتابونو ته کاتيې خېژونکے - جلد ساز

**صحافت** :- (صَ+حا+ف+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) د اخبار و رسالو فن - اخبار چلونه - اخبار نويسي - جرنلزم -

**صحافي** :- (صَ+حا+في) (عف تر - اس ، مذ ، ج - ان) هغه کس چې صحافت سره تعلق لري - اخبارونو ، رسالو سره تعلق لرونکے - جرنلسټ - اخبار نويس

**صحائف** :- (صَ+حَا+ئے+ف) (ع - اس - ج) د صحيفه جمع دے - کتابونه - رسالې -

**صحبت** :- (صُ+ح+بَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) مجلس - محفل - يوځاے ناسته پاسته -

د نا اهله سره کله روزګار کېږي
و هر قام وته صحبت د قام لذيذ (خواجه محمد)

(۲) خبرې اترې - ګپ شپ - (۳) سبل - پک نک (۴) کوراليے - جماع -

**ـــــ جوړول**:- د سبل د پاره په جمع بهر ته د تللو پروګرام جوړول - پک نک لمانځل -

**ـــــ داري**:- (دا+ري) (عف تر - اس - مو) هم بستري - کوراليے - مجامعت

**ـــــ کول**(۱) په مجلس کښې شريکېدل.

چې صحبت د ملوکانو سره کاندي
بويه دا چې وئيل نۀ کا لاندي باندي (خوشحال)

**ـــــ مونـدل**:- د چا په صحبت کښې د شامليدو په موقع مونـدل - چا سره د ناستې پاستې موقع په لاس ورتلل - ملاقات کول -

**د ـــــ تاثير**:- د مجلس تاثير - د مجلس اثر.

**صحبتي** :- (صُ+ح+بَ+تي) (عف تر - اس - مذ ، ج - ان په صحبت يا مجلس کښې شريکېدونکے - هم نشين - دوست - يار - مجلس کښې شاملېدونکے.

**صحت** :- (ص+ح+حَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) تندرستي - روغ صورت -

**ـــــ بخش**:- (بَ+خ+ش) (عف تر - صف) صحت بخښونکے.

**ـــــ بخښونکے**:- (بَ+خُو/ښُو+ن+کے) (اس فا - ج - کي) صحت ورکوونکے - تندرستي راوستونکے - د روغې ښتې د پاره فائده مند.

**ـــــ خانه**:- (خا+نَ) (عف تر - اس - مو ، ج - نې) ټټې - بيت الخلا.

**ـــــ خرابېدل**:- بيمار کېدل - ناروغه کېدل.

**ـــــ عامه** :- (عا+مَ) (اس - مذ) د عام اولس تندرستي - د عامو خلقو صحت -

**ـــــ لرل**:- تندرست - "بودل" -

**ـــــ مند**:- (مَ+ن+د) صحت لرونکے -

**ـــــ من**:- (م+ن) (عپ تر - صف مذ ، مو - ه) (۱) د صحت خاوند - د روغې ښتې ښبنتن - (۲) په وجود غښ - (۳) صحيح - بې عېبه -

**ـــــ موندل**:- صحت يابه کېدل.

**ـــــ ميندل**:- د ناجوړتيا نه رغېدل - د ناروغتيا نه جوړېدل - د بيمارئ ښخه ښۀ کېدل -

**ـــــ ياب**:- (يا+ب) (عف تر - صف) هغه چې صحت ئې موندلے وي - د ناجوړتيا نه روغ شوے - د ناروغئ ښخه جوړ شوے -

**ـــــ ياب کېدل**:- جوړېدل - رغېدل - د ناجوړتيا نه (ښخه) ښۀ کېدل -

**ـــــ يابي**:- (يا+بي) (عف تر - اس - مو) صحت موندنه - د مرض يا ناروغتيا نه ښۀ کېدنه - جوړېدنه - رغېدنه -

**دچا ـــــ پوښتنه کول**:-

**دچا ـــــ تپوس کول**:- د چا روغ روغ حال معلومول - يا د چا د بيمار د حال په حقله تپوس کول -

**صحرا** :- (ص+ح+را) (ع - اس - مو ، ج - ګاے)(کله کله د مذکر په طور جمع "-----" ونه هم راشي) -(۱) دشت - بيابان - مېره - لويه شنګوره ګاړ (راورتې) -

چېرته سبر د صحرا چېرته د ګلو
چېرته روغ رمتې سړے چېرته شبدا (شېدا ختک)

(۲) د ابادئ نه بهر پټې پولې - شنه او ابده زمکه - لکه:

عيد شو هم بهار شو و صحرا و ته خلق وؤت
زار دې د هغه چې په خپل يار نۀ دے محظوظ (خوشحال)

(۳) اورک زي د هنګو تحصيل ته وائي - د پښتنو د يو لوے قوم نوم چې اتلس واړۀ قومونه لري چې په اورکزئ ايجنسئ او کورمه ايجنسئ کښې اوسېږي

**ـــــ رو**:- (رَو) (صف) په صحرا يا شګلوړه کښې سفر کوونکے - صحرانورد -

**ـــــ روموټر**:- (مو+ټ+ر) (اس - مذ ، ج - ونه / رے) هغه موټر يا لارئ چې په شګلوړه علاقه کښې سفر کوي -

**ـــــ شين**:- (شي+ن) (و ------ صحرا نشين)

**ـــــ نشين**:-(نَ+شي+ن) (عف تر - صف ، مذ ، مو - ه) په صحرا کښې کښېناستونکے په صحرائ علاقو کښې اوسېدونکے -

**ـــــ نورد**:-(نَ+وَ+ر+د) (عف تر - اس/صف - مذ ، ج - ان) صحرا کښې ګرځېدونکے - د صحرا مسافر -

**ـــــ نورده**:- (نَ+وَ+ر+دَ) (عف تر - اس/صف - مو ، ج - دے)(د صحرا نورد د تانيث دے) -

**ـــــ نوردي**:- (نَ+وَ+ر+دي) (عف تر - اس - مو) په صحرا کښې ګرځېدنه - د صحرا مسافري صحرا په صحرا سفر کوونه -

**لوټه د ـــــ**:- (لُو+ټَ+د) د بيابان لوټه - ډېر بې ډېبې او بې قدر ښيز -

لکه لوټه د صحرا - (رحمان بابا)

**لويه ـــــ**:- (لو+يَ) (اس - مع) صحرا ے اعظم -

**صحرائے اعظم** :- (أ+ع+ظَ+م) (عف تر - اس مع) لويه صحرا - هغه لويه شلګوړه قطعه چې د افريقې د براعظم قطب طرفه ته خوره ده چې اوږد والے ئې تقريباً درې زره ميله او پلن والے ئې زر ميله دے -

**صحرائي** :- (صَ+ح+را+ني) (فپ تر - اس - ج - ني) صحرا سره تعلق لرونکے - صحرائ - د بېديا -

**صحرائي** :-(صَ+ح+را+ئي) (ف تر -صف) ځنګلي- هواګير- چې عادت کړے شوے نۀ وي- (مرغۍ وغېره) -

**صحرائي** :-(صَ+ح+را+ئـي) (صف) (۱) د صحرا اوسېدونکے - باديه نشين- د ښنګلوړو مېرو سړے - ښېدياي (۲) د صحرا سره تعلق لرونکے - لکه: صحراي بوټي-

**ـــ توپ خانه**:- (تو+پ+خا+نَ (اس -مو ، ج -نې) د فوځ د توپخانې هغه برخه چې خاص طور سره په صحرا (شګلوړه) کښې پکارولے شي-

**صحف** :- (صُ+حُ/حَ+ف) (ع-اس-ج) د صحيفه جمع ده - کتابونه -

**صحن** :- (ص/صَ+ح+ن) (ع-اس-ج-صحنونه)(۱) انګڼ - غولے -

پاکيزه ئې د کور صحن نۀ په غولي کښې ذولجن (خوشحال)

(۲) لوي تال- (پښتو کښې عموماً ددې تصغير "صحنک" استعمالېږي)

(۳) سان- (مشهور سپين ټوکے) (هند-لټها) (په فارسۍ کښې يو قسم ربښمين ټوکي ته هم وائي)

**صحنک** :- (صَ+ح+نَ+ک) (عف-اس) د صحن تصغير دے - وړوکے تال- (په پښتو کښې ددې بدل شکل "خانک" شانک" په مختلف شکله کښې استعمالېږي - خو معنٰى ئې لوے خاورين يا د لرګي تال) -

**صحنه** :- (صَ+ح+نَ) (عف تر -اس-مو ، ج -نې) ستېج -هغه دمقاچه (دونکاچه) چې د تندارچيانو په مخکښې پرې څۀ لوبه- ډرامه يا کرتب کولے شي - مېدان -منظر -

**صحه** :- (ص+حَ) (و---- صحت) ----------------------

**صحي** :- (صَ+حي) (و---- صحيح) ----------------------

چې خطا ګــــزار ئـــې رسا لګي

دا صحي حکم خطا ګزار د چا دے (حميد)

**ـــ بودل**:- درست "بودل" بې غلطۍ "بودل" -

**ـــ ده**:- درسته ده - صحيح خبره ده - تا چې څۀ ووې هغه درست دي - عموماً د بل سړي (مخاطب) د خبرې په اثبات کښې وئيلے شي - (په دې صورت کښې ئې تلفظ "سَئ" غوندې وي) -

**صحي** :- (صِ+ح+حي) (عف تر -صف) صحت سره تعلق لرونکے - صحت سره تړلے -

**ـــ سرويس**:- (انګ ف تر -مذ) د صحت په حقله خدمت - د صفاى خدمت يا اداره

**ـــ غلط**:- (غَ+لَ+ط) (عپ تر -اس) د امتحان يوه مغربي طريقه چې پکښې د يـو سوال يـو څـو جوابونـه ورکـړے شـي چـې يـو پکښـې درست وي - اميدوار په دغو جوابونو کښې صحيح جواب په نښنه کوي يا د يو سوال يـو جواب ورکـړے شي او د اميـدوار د صـحي يا غلط پـه خانـه کښـې نخښنه لګوي يعني دغه ليک درست دے او که نۀ دے -

**ـــ کېدل**:- (۱) په نظر کښې راتلل - لېدلے کېدل - (۲) درستول - اصلاح کول -

**ـــ مامورين** :- د صحت سره متعلق افسران د صفاى د محکمې ملازمان -

**صحيح** :- (صَ+حي+ح) (ع-صف) (۱) درست - راست - (۲) تندرست - صحت واله (۳) د عېب نـه پاک - بې عېبه - (په پښتو کښې اخري "ح" په تلفظ کښې نه راځي - ځينې وخت "صحي" هم ليکلے شي - بلکې ځينې کسان خو سحي او سهي هم ليکي - خو د عربۍ په مرکباتو کښې کوم چې په پښتو کښې هم استعمالېږي - دغه "ح" ښکاره شي) -

**ـــ بخاري**:- (بُ+خا+ري) (اس مع) د احاديثو مشهور کتاب دے چې امام بخاري په ډېر زيات محنت او زيار سره تقريباً شپږ لکو حديثونو کښې د لسو زرو نه کم حديثونه منتخب کړي دي- د احاديثو په کتابونو کښې د ټولو نه زيات صحيح کتاب منلے شوے دے - دې سره دويم کتاب د امام مسلم د حديثونو مجموعه ده - امام مسلم هم دغه شان د لکونو حديثونو يو څو زره حديثونه غوره کړي دي - دې دواړو کتابونو ته صحيحين (دوه صحيح کتابونه) وئيلے شي -

**ـــ سالم**:- (سا+ل+م) (عف تر -صف ، مو -ه) صحيح او سالم - روغ رمټ - درست بغېر د څۀ کمي زياتي نه يا د ماتې ګوډې نه -

**ـــ سلامت**:- (سَ+لا+مَ+ت) (عف تر -صف) روغ رمټ - ژوندے (جوندے) روغ جوړ -

**ـــ مسلم**:- (مُ+س+ل+م) (اس-مع) د حديثونو دويم صحيح ترين کتاب چې امام مسلم راجمع کړي دي -

**ـــ فکر وهل**:- درست فکر کول - صحيح سوچ کول -

**ـــ کول**:- (۱) په نظر کښې راوستل -

دا د سر پــــه سترو مــه ګــوره خوشحال ته

که د زړۀ سترګې لرې ، ښۀ ئې صحيح کړه

(خوشحال) (۲) درستول - اصلاح کول -

**ـــ البدن**:- (حُ+ل+بَ+دَ+ن) (ع تر -صف ، مذ ، مو -ه) د صحيح بدن څښتن - هغه کس (يا ځناور) چې په بدن کښې ئې نقص نۀ وي -

**ـــ العقل**:- (ح+ل+عَ+ق+ل) (ع تر -صف) د صحيح عقل خاوند - هغه کس چې عقل سود ئې په ځاے وي -

**ـــ النسب**:- (حُ+ن+نَ+س+َب) (ع تر -صف) هغه کس چې د هغۀ په نسل کښې څۀ عېب نۀ وي - د نسب سلسله ئې درسته روانه وي-

**د ـــ فکر خاوند/څښتن**:- **صائب الراے** - هغه کس چې درسته او صحيح راے يا فکر لري - عقلمند - هوښيار -

**صحيفه** :- (صَ+حي+فَ) (ع-اس-مو ، ج -فې) (۱) کتاب - رساله - (۲) اسماني کتاب - (۳) چيټۍ - خط -

**ـــ اسماني**:- (ا+س+ما+ني) (عف تر -اس مو ، ج -خې) هغه کتاب چې د اسمان نه راکوز شوے وي - الهامي کتاب - مقدس کتاب -

**صحيه** :- (ص+ح+حي+يَ) (عف تر -صف) صحت سره تعلق لرونکے - صحي -

**صحيحې** :-(صَ+ح+حي+ې) د "صحيه" اضافي او مجروري شکل دے -

**د ـــ مدير**:- (مُ+دي+ر) (فپ تر -اس -مذ ، ج -ان) هغه کس چې د اولس د صحت د محکمې مشر وي - د صحت د محکمې ډائرکټر -

**د ـــ وزارت**:- (فپ تر -اس -مذ ، ج -ونه) هغه وزارت چې د اولس د صحت او تندرستۍ سره تعلق لري - د صحت وزارت -

**صخره** :- (صَ+خ+رَ) (ع-مو ، ج -رې) (۱) لوے کاڼے - لويه تړه - کر کنده - (۲) د بيت المقدس مشهور کاڼے -

**صخره جني** :- (ج+ن+ني) (اس -معرفه) د يوې فرضي قيصې فرضي جني (د يو) نوم دے - چې په فريب ئې د سليمان عليه السلام ګوته تر لاسه کړه او ددغې ګوتې په برکت ئې څۀ ورځې باچاهي وکړه -

کـــه صخره جني کينه دښمنـــي وکړه

واے نۀ خست بخت دوست له سليمانه (حافظ)

**صد** :- (صَ+د) (ف-اس-عدد) (۱) سل - پنځه شلې (۱۰۰) (۲) ډېر - ګڼ -

**ـــ افرين**:- (ا+فَ+ري+ن) (د تحسين کلمه) شاباش - ډېر ځله يا ډېر شابسې دې وي

**ـــ بر**:- (بَ+ر) (و---- صدبرګ) --------------------

**ـــ برګ**:- (بَ+ر+ګ) (ف-اس-مذ) مشهور ګل - صدبر - سل پاڼې -

**ـــ چندان**:- (چَ+ن+دا+ن) (ف تر -عدد) سل چنده - (مراد ترې ډېر زيات)

هسې نه چې زمـــا يار واړه جفا که

صد چندان لکه جفا هسې وفا که (رحمان بابا)

ــــ **رحمت**:- (رَ+ح+مَ+ت) (د تحسين كلمه) افرين - شابسي - ډېر شابسې -
صد رحمت د عاشقانو پــه همت شه
چــې پـه طمع د ديدن د سر سودا كـا (خوشحال)

ــــ **ساله**:- (سا+لَ) (فپ تر - صف) د سلو كالو - چې سل كاله عمر لري - مجازاً ډېر زوړ - د اوږد عمر -
كــه مــې يار پـه لاس باده واخلي ساقي شي
پرې مې ډار شي چې مې زهد صد ساله شته (خوشحال)
چې مې يار لږه تر شي په جبين راوړي
كوز كـــه كيف د شرابـونو صد ساله (حميد)

ــــ **شكر**:- (شُ/ش+ك+ر) (كلمه شكر) ډېر ډېر شكر دے -

ــــ **هزار**:- (هَ+زا+ر) (اس - عدد) سل زره - يو لک - مجازاً ډېر زيات شمېر كښې - بې شمېره -
هزار حيف دے هزار حيف
هزار شــــهٔ لاصـد هزار (رحمان بابا)

**صدا** :- (صَ+دا) (ع - اس - مو ، ج - ګانې) (۱) اواز - غږ - ږغ - چغه - (۲) د فقير - د خېر خېرات غوښتلو) اواز - (۳) (ف) هغه اواز چې پـه ګنبد كښې يـا د غرونو خوا كښې پسته اورېدے شي -

ــــ **بند**:- (بَ+ن+د) (ف تر - صف مـذ ، مـو - ه) (۱) اواز بنـدوونكے - (۲) هغـه كوټه ياځاے كوم چې دبهرني اواز نه محفوظ وي - (ساؤنډ پروف)

ــــ **بندي**:- (بَ+ن+دي) (ف تر - اس - مو) د اواز بندونه - فلمونو وغېره كښې د چا اواز رېكارډ كول -

ــــ **دار**:- (دا+ر) (ف تر - صف مـذ ، مـو - ه) صدا لـرونكے - اواز لـرونكے - ــــ راتلل:- اواز راتلل - غږ راتلل - ږغ راتلل - ژغ راتلل -

ــــ **وركول**:- اواز وركول - غږ كول - ږغ كول -

**صدا خېل** :- (صَ+دا+خېل) (اس مع) دا د اسپر كا ښانګه ده او اسپر كا ، د كالو خېل ، احمدزئ ، درويش خېل ، وزير دي -

**صـدارت** :- (صَ+دا+رَ+ت) (ع - اس - مـذ ، ج - ونـه) (۱) بـالانشـيني - (۲) د يـو غونډې يا جرګې مشري - (۳) پخوا يوه عهده وه چې د وزير د لاندې وه -

ــــ **اعظم**:- (اَ+ع+ظَ+م) (ع تر - اس - مـذ) لوے صـدارت - (پخوا) د وزير اعظم عهده

ــــ **عظمیٰ**:- (عُ+ظ+م) (ع------ صدارت ه اعظم)

ــــ **كول**:- د يوې جرګې يا د غونډې وغېره مشري كول - سربراهي كول

**صدازئ** :- (صَ+دا+زَ+ئ) (اس - مع) دا د مـاليزئيو ښانګـه ده چې ركهنوال لـوني دي

**صُداع** :- (صُ+دا+ع) (ع - اس - مـذ) د سر درد - د سر كوږېدنـه - د سر ډېر سخت درد -
سخت ساعت دے د وداع پـه اشوب و پـه صداع
(خوشحال)

**صداق** :- (ص+دا+ق) (ع - اس - مذ) د ښځې حق مهر - كابين - ولور -

**صـداقت** :- (صَ+دا+قَ+ت) (ع - اس - مـذ ، ج - ونـه) (۱) رښـتياوالے - رښـتيني - راستبازي - (۲) دوستي - رښتيني دوستي - (۳) تصديق - ثبوت -

ــــ **كول** ، د چا:- تصديق كول - د چا د خبرې وغېره ته رښتيا وئيل -

ــــ **ماب**:- (مَ+ا+ب) (ع - تر - صف) د عـزت يـو لقب دے چې عمومـاً داسـې عزت واله خلقو ته په ليک كښې د هغه د نوم سره ليكلے شي -

ــــ **وشجاعت همراه**:- (عف تر - ص) د افغانستا د حكومت يـو خطاب دے عموماً د مخفف په طور "ص - ش" ليكلے شي -

ــــ **همراه**:- (هَ+م+را+ه) (عف تر - اس) د افغانستـان د حكومت يـو خطاب دے - د مخفف په طور صرف "ص" ليكلے شي - چې نورو الفاظو سره راځي -

**عـالي قدر ــــ مـاب**:- (عـف تر - اس) د افغانستـان د حكومـت يـو خطاب دے - عموماً د مخفف په طور "ع - ص" ليكلے شي -

**صدد** :- (صَ+دَ+د) (ع - اس - مذ) مقصد - اراده - اهنګ -

**صدر** :- (صَ+دَ+ر) (ع - اس - مـذ ، ج - ان) (۱) د يـو ټـولي يـا جرګې وغېـره مشـر - پريذيـډنټ (۲) سـينه (زړهٔ) (۳) د ناسـتي اوچـت ځـاے (۴) (پخـوا) هغـه منصب دار چې د وزير اعظم نه كوز وهٔ او د نورو نه اوچت وهٔ - (۵) د عروض په علم كښې د شعر اولنے لفظ "صدر" نومېږي - (۶) د كوم ښار په خوا كښې هغه علاقه يا ابادي چې د فوځ او د علاقې د حاكمانو د پاره مخصوص كړے شوې وي - چاوڼي - (۷) لوے - مركزي لكه "صدر دفتر" -

ــــ **اعظم**:- (اَ+ع+ظَ+م) (ع - اس - مـذ ، ج - ان) لـوے صـدر - لـوے وزيـر - لـوے واكوال - ستروكوال -

ــــ **بازار**:- (با+زا+ر) (عف تر ا س - مذ) هغه بازار چې د صدر په علاقـه كښې وي - د چاوڼۍ بازار -

ــــ **مجلس**:- (مَ+ج+ل+س) د يوې غونډې يا جلسې مشر - پريذيډنټ -

ــــ **مقام**:- (مُ+قا+م) (عف تر اس - مذ ، ج - ونه) د يـو ملـک يـا د علاقې (صوبې وغېره) مركزي ښار ، چېرته چې ددغې ملک باچا يـا حاكم (ګورنر وغېره) اوسي

ــــ **نشـين**:- (نَ+شـي+ن) (عـف تـر - اس - مـذ ، مـو - ه) د صـدر پـه مقـام كښېناستونكے د مشرۍ په ځاے كښېناستونكے - مشر - مسند نشين -

ــــ **نشيني**:- (نَ+شي+ني) (ف تـر - اس - مـو) برنـي ځـاے كښـې كښېناسـته - برناستے مشري - صدارت -

ــــ **الدين**:- (رُ+د+دي+ن) (ع تر - اس) په اسلامي حكومت كښې يوه ديني عهده ده -

ــــ **الصدور**:- (رُ+ص+صُ+دُو+ر) (ع تر - اس - مـذ) د صـدرانو صدر - د مشرانو مشر - يوه پخوانۍ عهده -

ــــ **الممالک**:- (رُ+ل+مَ+ما+لِ+ک) (ع - اس - مذ) د سلطنت وزير - (پخوا)

**صدراني** :- (صَ+د+را+ني) (اس - مع) دا د عمرانيو ښانګه ده چې جعفردي -

**صـدر خـان** :- (صَ+دَ+ر+خا+ن) (اس مـع) صـدر خـان ختـک - د خوشـحال خـان ختـک زوے چې هغـه هـم ښـهٔ شـاعر وهٔ - د آدم درخانۍ او دلـے شـهۍ قيصې ئې په ښكلي انداز نظم كړي دي - په توره هم مړنے وهٔ -
صدرخان لا چېرې جنګ ليدلے نه وهٔ
په دا جنګ ئې نېزه سره كړه په خصام (خوشحال)

**صدره** :- (صَ+د+رَ) (اس - مو) (۱) د بني ادم د بـدن برنـۍ حصـه - (۲) د منطق يـو مشهور كتاب دے -

**صـدرۍ** :- (صَ+د+رَ+ۍ) (ع - اس - مـو) سـينه پـوش - يوقسـم لنډشـان قمـيص اندركه - ټټرۍ - سدرۍ -

**صدف** :- (صَ+دَ+ف) (ع ا س - مذ ، ج - ونه) سپپ - سپۍ -
صدف كښېښول و بله لب خپل
نفس ئې ځكه سود ، ګوهر وړي (سعيد)

**صدفي** :- (صَ+دَ+في) (ف تر - صف مـو) صف (سيپۍ) سره تعلق لـرونكے - سپيځ

**صدق** :- (ص+د+ق) (ع ا س - مذ) رښتيا - رښتياوالے - اخلاص - اخلاص مندي

ــــ **وكذب**:- (قو)+كو+ذ+ب) (عف تر - اس) رښتيا او دروغ -

**دزړهٔ د ــــ نه (ځخه)**:- د زړهٔ په اخلاص -

**صدق زئ** :- (صِ+د+ق+زَ+ئ) (اس - مو) دا د باركزيو ښانګه ده چې ترغره كاكړ دي -

**صدقه** :- (صَ+دَ+قَ) (ع-اس-مو ، ج-قې) خېرات-هغه پيسې ټکې وغېره چې فقيرانو او مسکينانو له ورکولے شي-

**ــــ جاريه**:- (جا+ري+يَ) (ع-تر-اس-مو) د خېرات هغه کار چې فائده ئې تل خلقو ته رسي-لکه کوهے کنستل-نهر مدرسه وغېره جوړول-

**ــــ دفطر**:- (دَ-ف+ط+ر) (عف تر-اس مو) د وړوکي اختر صدقه-سر سايه-

**ــــ (د) (دځۀ)**:- (جمله) خېرات دے-برکت دے-

دا همـــه زمـــا د توري صدقه ده

پښتانۀ چې پر ګنې خوري سيور غال (خوشحال)

**ــــ شم**:- درځارشم-تانه قربان شم-(عموماً ښځې د ډېرې مينې نه وړو يا خپلو خوږو ته وائي)-

**ــــ شه**:- (شَ) (جمله) ځار شه-قربان شه-د کوم څيز د حقارت او بې قدرۍ په حقله وئيلې شي-

د قانع تـر قناعته صدقه شه

هم دنيا او هم دينار ددې دنيا (رحمان بابا)

**ــــ کول**:-(۱) خېرات کول-د خدا ے په نامه ورکول-(۲) قربانول-ځارول-شيندل

که د مشکو انبار مې په لاس کښېوځي

همګـــي بـــه صدقه کړم ستا تر ځاله (خوشحال)

**ــــ کول د چا د سر نه**:-د چا د سر نه قربانول-د چا د سر د حفاظت د پاره ځارول

**ــــ کېدل**:- (۱) قربانېدل-ځارېدل- (۲) خېرات کېدل-شيندلے کېدل-

تر عاشق دې صدقه شي

کـه زاهـــد دے که ملا (خوشحال)

**ــــ ورکول**:-خېرات ورکول-

**د سر ــــ**:-د چا د سر د حفاظت او روغتيا د پاره قرباني يا خېرات-

**صدقې** :- (صَ+د+قې) د "صدقې شم" يا "صدقه شم" مخفف چا سره د بې کچه مينې د ښکاره کولو په موقع وئيلې شي-قربان !يا درځا! يعني تانه قربان شي يا تانه ځار شم-

**ــــ قربان**:- (قُ+ر+با+ن) (عف تر-جمله) د صدقې شم-قربان شم-مخفف شکل دے-يعني تانه صدقې ، تانه قربان-

**ــــ قربان کول** ، چاته:-چاته ډېره زياته مينه ښکاره کول-د ډېرې زياتې مينې اظهار کول

**ــــ قربان کېدل**:-د چا نه ځارېدل-د ډېرې زياتې مينې اظهار کول-

**ــــ کېدل**:- قربانېدل-ځارېدل-

**صدقات** :- (صَ+دَ+قا+ت) (ع-اس-ج) د صدقه جمع ده-(و--------- صدقه-

**صدمه** :- (صَ+د+مَ) (ع-اس-مو ، ج-مې) (۱) ديکه-ټېله-حادثه-مصيبت-(۲) دوک-اواز-(۳) ګذار-ضرب-

**ــــ برداشت کول**:- يا غم برداشت کول-

**ــــ زغمل**:-تکليف يا مصيبت وغېره په ځان تېرول-

**ــــ رسول**:-(۱) سخته ديکه رسول-سخت تکليف يا نقصان ورپېښول-(۲) چاته غم او دوک رسول-مصيبت يا تکليف ور دوځارول-

**ــــ رسېدل**:-(۱) سختې ديکه رسېدل-ديکې خوړل-(دځۀ حادثې وغېره په وجه) (۲) زړۀ ته دوک يا غم رسېدل-د غم ډېره لويه حادثه پېښېدل-

**ــــ جسماني**:- (جِ+س+ما+ني) هغه تکليف يا دوک چې بدن ته ورسي-

**ــــ روحاني**:- (رُو+حا+ني) هغه صدمه تکليف يا دوک کوم چې د بني ادم روح ته ورسي-يعني زړۀ پرې خفه او غمجن شي-

**صدور** :- (صُ+دو+ر) (اس-ج) (۱) د "صد" جمع-سينې (زړونه) ټټرونـه (۲) جاري کېدنه-اجرا-نافذ کېدنه-نفاذ-(۳) د کوم ځا ے نه بهر راوتل-

**صدي** :- (صَ+دي) (ف ، اس-مو) د سلو کالو موده-پېړۍ-

**ــــ ذات**:- (ذا+ت) (ف ، تر-اس) د مغلو د وخت يو عهده-چې منصب دار به پينځۀ زره روپۍ منصب اخستۀ-

**صديانزي** :- (صَ+د+يا+ن+زَ+ي)

**يا ، شادياني** :- (شا+د+يا+ني) (اس-مع) د جالاو ځانګه ده-لوښي دي-

**صديه** :- (صَ+دي+ي) (ع-اس) زوے-پيپ (چې د دوزخيانو خوراک به دي)-

نوش د کـوثر حافظ له ورکړې

ربه نګاه ئې که اب صديه کړې (حافظ)

**صديق** :- (صِ+د+دي+ق) (ع-صف مذ ، مو-ه)(۱) ډېر رښتونے-ډېر تصديق کوونکے-(۲) د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه لقب چا چې بغېر د معجزې د غوښتلو د حضورصلعم تصديق کړے وۀ يا ئې د معراج د واقعې تصديق کړے وۀ-ځينې خلق صَديق (د صواد زَور سره هم تلفظ کوي)-(۳) دوست-رفيق-

په صديق په رفيق مهـــر کړه شفيقه

مجلس ناسته د دوستانو نوراني ده (حافظ)

**ــــ اکبر**:- (اَ+ک+بَ+ر) لوے رښتونے-د حضرت ابوبکر لقب دے-

**صديقه** :- (صِ+د+دي+قَ) (ع-مو) د "صديق" تانيث دے-ډېره زياته رښتونې ښځه-د حضرت عائشه رضي الله عنها لقب دے-د حضرت عيسٰی عليه السلام د مور بي بي حضر مريم لقب هم دے-

**صديقي** :- (صِ+دي+قي) (اس مع) د مسلمانانو يو خاندا چې ځان د ابوبکر صديق رضي الله عنه د اولاد څخه ګڼي-

**صواپ** :- (صَ+ر+را+پ) (و--------- صراف)

**صراح** :- (صُ+را+ح) (ع-اس-مذ) (۱) خلاصه-هر خالص څيز-خالص سوچه کېدل-(۲) د عربۍ د لغت يو مشهور کتاب-

**صراحت** :- (صَ+را+حَ+ت)(ع-اس ، مذ ، ج-ان) ښکاره کېدنه-ظاهرېدنه-وضاحت

**صراحتهً صراحتاً** :- (صَ+را+حَ+تَ+ن) (ع-تف) په صراحت سره - په وضاحت سره ښکاره ښکاره-صفا صفا-په څرګندډول-

**صراحي** :- (صُ+را+حي) (ع-اس-مو) (۱) د اوبو د يخو کښېښودلو لوښے چې خولۀ ئې تنګه او غړۍ لويه وي-(۲) د شرابو د همدغه شکل لوښے-

**ــــ دار**:- (دا+ر) (عف تر-صف-مذ ، مو-ه) د صراحۍ په شان-صراحۍ د غړۍ په شان (شاعري) عموماً د معشوقې مرۍ له اوږدې غړۍ سره تشبيه ورکولے شي-غندل غاړے-

**صراط** :- (صِ+را+ط) (ع-اس-مذ ، ج-ونه)(۱) نبغه لار-لار-ليـاره-(۲) ديو پُل نوم چې د دوزخ په سر به جوړ شوے وي-ټول بني ادم به په دې پول تېرېږي-نېک خلق بـه پـرې پـه اسـانـه تېـر شي-خو ګنهګاران بـه پـرې نـه شي تېرېدے او دوزخ کښې به پرېوځي-وائي چې دا پُل د وېښتۀ نه نرے او د توري نه تېرۀ دے-

و دانا و ته په دا جهان ښکارېږي

هم جنت او هم دوزخ او هم صراط (رحمان بابا)

**ــــ المستقيم**:- (طُ+ل(م/ُ+س+تَ+قي+م) (ع تر-اس-مذ) نبغه لار-سمه لار-"اسلام" ترې مراد دے-

**صراف** :- (صَ+ر+را+ف) (ع-اس-مذ ، ج-ان)(۱) کره کوټه کتونکے-کرے (کاکې)

اب و تـــاب و تـــا کـــره مهـــرو وي همـــره

څـــو نظـــر پـــرې شـــوے نـــه وي د صـــراف

(۲) هغه کس چې نقد (پيسو ټکو) د بدلولو کاروبار کوي-د يو ملک سکې (يا نوټونه) د بل ملک سکو (يا نوټونو) سره بدله ولو واله-

ـــــ **خانه**:- (خا+نَ) (عف تر-مؤ ، ج-نې) د صرافانو ځاے-د صرافانو بازار-صرافه بازار-

**صرافت** :- (صَ+را+فَ+ت) (وــــ صرافي)

**صرافه** :- (صَ+ر+را+فَ+ه) (اس-مؤ) د پېسو ټکو د بدلولو کاروبار-

ـــــ **بازار**:- (با+زا+ر) (فپ تر-اس-مذ) (۱) د صرافانو بازار-صراف خانه(۲) د صرافانو د بازار نرخونه د سرو او د سپینو زرو نرخونه-

**صرافي** :- (صَ+ر+را+في) يا (صَ+را+في) (عف تر-اس-مو) د صراف کسب-د صراف پېشه-د پېسو ټکو بدلولو رابدلولو يا د کره کوټه معلومولو کاروبار-

**صرامت** :- (صَ+را+مَ+ت) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) بهادري-شجاعت-زړۀ ورتيا

**صرب** :- (صَ+ر+ب) (اس مع) د صربيا ملک-صربستان-

**صر صر** :- (صَ+ر+صَ+ر) (ع-اس-مذ) سيلۍ-جکړ-تېز باد-

په صر صر د ښېلتانۀ شوله نسکوره
استاده سروه د بـــاغ په کنارې وه (حافظ)

**صرع** :- (صَ+ر+ع) (ع-اس-مو) مشهوره بيماري-مرګي-ډکه-مېرګيان

**صرف** :- (صَ+ر+ف) (ع-اس) (۱) کره کوټه کتل-پلټنه-د صرافۍ کار-(۲) خرڅ-لګښت-(۳) د يو علم نوم چې په کښې ديوې کلمې د عوارضو يعني د هغې تقسيم ،تعليل او د اشتقاقونو وغېره بحث کولے شي-

ـــــ **کول**:- خرڅ کول-لګول-په کار کښې راوستل-لکه په کور ئې ډېرې پېسې صرف کړې-

ـــــ **کېدل**:- لګېدل-خرڅ کېدل-

ـــــ **نظر**:- (نَ+ظَ+ر) (ف تر-تف) پېښودنه-اغماض-ترک کول-

ـــــ **نظر کول**:- پرېښودل-ترک کول-اغماض کول-سترګې پرې پټول-

ـــــ **ونحو**:- (فو)+نَ+ح+و) (ع تر-اس-مذ) د يوې ژبې پوره قواعد (ګريمر) چې پکښې هم د لفظونو بحث وي او هم د مرکباتو او د جملو بحث وي-

**صرف** :- (صِ+ر/ر+ف) (ع-صف) فقط-بس-خالي-ددې نه زياته نه-لکه ددې کتاب قيمت شل روپۍ دے يا ته هغه ته صرف دومره قدر ووايه چې ـــــ ،

**صرفه** :- (صَ+ع+فَ) (ع-اس-مو ، ج-خې) (۱) بچ کونه-سپماو-کفايت شعاري (۲) وار-فرصت-(۳) دريغ-حيله-احتاط-

ـــــ **بخښونکے**:- (بَ+خُو/ښُو+ن+کے) (عپ تر-اس فا ، ج-کي)(۱) فائده وركوونکے-منافع بخش- (۲) بچت واله-کم خرڅه-

ـــــ **جو**:- (جُو) (عف تر-صف) فائده لټوونکے-نفع لټوونکے-د فائدې جو يا بچت غوښتونکے-

ـــــ **جوئي**:- (جُو+ئي) (عف تر-اس-مو) فائده لټونه-نفع لټونه-فائده جوي-بچت کوونه-

ـــــ **کول**:- (۱) بچ کول-کفايت شعاري کول-سپماو کول-(۲) دريغ کول-لاس نيول-ايله کول-تامل کول-(عموماً د نفي په صورت کښې راځي لکه په مال لګولو ئې هېڅ صرفه ونۀ کړه يا که په دښمن دې لاس برشي نو هېڅ صرفه پرې مه کوه-

چې په خپل بابا ئې نۀ ده صرفــه کړې
د جفـــــا ئې په دا نورو څۀ اهمـال (خوشحال)

ـــــ **وړل**:- (صَ+ر+فَ) سبقت موندل-غالبه کېدل-وړکېدل-فائده موندل-

ـــــ **بې**:- بې دريغه-بې احتاطه-

تا به هم بـې صرفه قتلونه نۀ کړل
که دې ويره شوه له خونه له عذابه (خوشحال)

**صرفي** :- (صَ+ر+فِي) (اس-مذ ، ج-ان)(۱) د صرف د علم پوهان- (۲)د صرف د علم متعلق-

ـــــ **قواعد**:- (قَ+وا+ع+د) (عف تر-اس-ج)(۱) هغه قاعدې چې کومې د صرف علم سره تعلق لري-(۲) د قواعد (ګريمر) هغه کتاب چې په کښې صرف د علم قاعدې وغېره ليکلې شوې وي-

**صرفيات** :-(صَ+ر+ف+يا+ت) (عف تر-اس-ج) د بچت کولو علم-

**صرفېدل** :-(صَ+ر+فې+د+ل) (مص) خرڅ کېدل-لګېدل صرف کېدل-

**صريح** :- (صَ+ري+ح (ع-صف-مذ ، مو-ه) ظاهر-ښکاره-واضح-صفا-اوڅار-برڅېره-څرګند-

ـــــ **کول**:- ښکاره کول-په ډاګه کول-څرګندول-

پــــه حسد پــــه رخــــه څۀ زما پروا ده
چې دې پټه مينه کړه اوس ئې صريح کړه (خوشحال)

**صريحاً** :- (صَ+ري+حاً) (تف) ښکاره طور سره-واضح طور سره-ظاهر-بهر-برڅېره-په ښکاره ډول-

**صريحي** :- (صَ+ري+حي) (عف تر-صف) ښکاره-واضح-څرګند-

**صرير** :- (صَ+ري+ر) (ع-اس-مذ ، ج-ونه)(۱) د قلم اواز کوم چې د ليخت ترې پيدا کېږي-کښېهار-کرکړے-(۲) د دروازې د لرې کېدو او بندېدو اواز-چينار يا کړک کړک (۳) ښکالو-(۴) مطلق اواز-

**صريمه** :- (صَ+ري+مَ) (ع-اس-مو ، ج-ې) اراده-پخه اراده-عزيمت-انکځه-تکل

**صعب** :- (صَ+ع+ب) (ع-اس) (۱) ګران-سخت-دشوار-مشکل-(۲) تند-سرکش-

ـــــ **العبور**:- (بُ+ل)ع+بُو+ر) (ع تر-صف) چې پورې و تنه ترې ډېر سخته يا ګرانه وي-په عمل کښې نۀ راتلونکے-ناقابل عمل-

ـــــ **العلاج**:- (بُ+ل+ع+لا+ج) (ع تر-صف) چې علاج ئې ډېر سخت يا ګران وي-ناعلاجه-چې علاج ئې نۀ شي کېدے-

ـــــ **الورود**:- (بُ+ل+و+رُو+د) (ع تر-صف) چې وارد کول ئې ګران يا سخت وي-ناقابل ورود-

**صعقه** :- (صَ+ع+قَ) (ع-اس-مو-ج-قې) بېهوشي-بې شدي-واګنه-

**صعابت** :- (صُ+عُو+بَ+ت) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) ګرانه-سخته-دشواري-تکليف-مصيبت-ربړه-ربړه-

کــه د عنقــاو جالې غوارې کوه قاف لره ځه
په صعوبت به مقصود مومې په اسانه نۀ شي (حافظ)

**صعود** :- (صُ+عُو+د) (ع-اس-مذ ، ج-ونه)(۱) بره ختنه-په بره تلنه-(۲) لوړوالے (۳) د حساب په علم کښې صعود هغې ته وائي چې يو عدد له په همدغه کښې يو څو ځله ضرب ورکړے شي-

ـــــ **کول**:- په بره ختل-په بره تلل-

**صعودي** :- (صُ+عُو+دي) (عف تر-صف) بره ختونکے-يا بره ختلو سره متعلق-

**صعوه** :- (صَ+ع+وَ) (ع-اس-مو ، ج-يې) مشهوره مرغۍ-چورندک تول تولکے

**صغار** :- (ص+غا+ر) (ع-ج) (۱) د صغير جمع ده-واړۀ هلکان-(۲) د لاندې درجې بې قدره او خوار خلق-(۳) د صغراي جمع هم ده په معنٰی او وړې جينکۍ-يا واړۀ ځيزونه-

ـــــ **اوکبار**:- (اَو+کُ+طا+ر) (عپ تر-اس) واړۀ او لوے-لوے واړۀ همه (خلق عوام

**صغائر** :- (صَ+غا+ئي+ر) (ع-اس-ج) د صغيره جمع ده-(۱) وړې وړې خبرې-واړۀ معاملات-(۲) واړۀ ګناهونه-(۳) وړې جينکۍ-وړې جونه-

**صغر** :- (صِ+غ+ر) (ع-صف) (۱) وړوکوالے - وړوک توب - کمکیتوب - وړکینه - (۲) د سابقې په طور استعمالېږي -

**ـــــ سن**:- (س+ن) (ع تر - اس - مذ) کم عمري - وړوکے عمري - خوردسالي

**ـــــ سني**:- (سَ+ني) (ع - تر - اس ، مو) وړعمري - کم عمري - خوردسالي -

**صغریٰ** :- (صُ+غ+را) (اس - مو) (۱) هر هغه څیز چې وړوکے وي - وړوکے څیز - (۲) وړه ښځه - وړکۍ - (۳) د منطق په اصطلاح کښې اولنۍ قضیه - (۴) د مسلمانانو په نومونو کښې استعمالېږي -(۵) د امام حسین علیه السلام لور بي بي لقب -

**صغیر** :- (صَ+غي+ر) (ع - صف - مذ ، مو - ه) وړوکے - کچ - کچنے - کمکے -

**ـــــ سن**:- (س+ن) (عف تر - صف) د وړوکي عمر - کم عمر - کچ عمر -

**ـــــ وکبیر**:- (رو)+کَ+بي+ر) (عف تر - اس) واړۀ او لوے - لوے واړۀ - ټول خلق - عوام -

**صغیره** :- (صَ+غي+رَ (ع - صف - مو) د صغیر تانیث دے - وړه - کچه - (عموماً د ګناه لفظ سره راځي) -

**ـــــ ګناه**:-(ګُو/ګُ+ناه) (عف تر - اس - مو) وړه ګناه - ل (د کبیره ګناه په مقابله کښې) قطار - پره - قط - څېره -

**ـــــ ارا**:- (ا+را) (عف تر - صف) د جنګ په مېدان کښې صفونه جوړوونکے - جنګ ته صفونه (یا صف) ترونکے -

**ـــــ اراکېدل**:- د جنګ د پاره قطارونو کښې ودرېدل - د جنګ د پاره صفونه جوړول - د جنګ د پاره تیار ودرېدل -

**ـــــ ارایي**:- (ا+را+یي) (عف تر - اس - مو)صفونه جوړول - صفونه تړل - جنګ د پاره د لښکر قطارونه جوړول - د جنګ د پاره تیارے -

**ـــــ ارایي کول**:- د جنګ د پاره د فوځونو قطارونه جوړول - د جنګ د پاره لښکر تیار او ودرول -

**ـــــ بسته**:-(۱) صف تړلے - په قطار یا قطارونو کښې درست شوے (۲) جنګ ته تیار

**ـــــ بسته کول**:-(۱) قطارونه جوړول - په قطارونو کښې اودرول - (۲) د جنګ د پاره په قطار (یا قطارونو) کښې اودرول - جنګ ته تیارول -

**ـــــ بسته کېدل**:-(۱) قطارونه جوول - په قطارونو کښې اودرېدل - (۲) د جنګ د پاره قطارونه کېدل - جنګ ته تیارېدل-

**ـــــ بندي**:- (بَ+ن+دي) (عف تر ا س - مو) (۱) قطار یا قطارونه جوړونه - (۲) د جنګ د پاره فوځ تیار اودرونه -

**ـــــ بندي کول**:- قطارونه جوړول - خلق په قطارونو کښې اودرول - د جنګ د پاره فوځ په قطارونو کښې اودرول - د جنګ د پاره تیارېدل -

**ـــــ تړل**:- (تَ+ړ+ل) صف جوړول - قطار جوړول - په نمانځه کښې د امام پسې صف سمول -

**ـــــ تړنه**:- (تَ+ړ+نَ (فپ تر - اس - مو ، ج - نې) صف جوړونه - صف سمونه - صف بندي -

**ـــــ در**:- (دَ+ر) (عف تر - صف - مذ ، مو - ه) (۱) صف ماتوونکے - بهادر - توریالے - جنګالے - مېړنے -(۲) د حضرت علي کرم الله وجهه لقب-

**ـــــ شکن**:- (ش+کَ+ن) (عف تر - صف مذ ، مو - ه) صف ماتوونکے - توریالے - جنګیالے - مېړنے - بهادر - زړۀ ور -

**په وړمبي ـــــ کښې اودرېدل**:-(۱) په نمانځۀ کښې په اولني قطار کښې اودرېدل - (۲) د جنګ په مېدان کښې د ټولو نه وړاندیني قطار کښې اودرېدل -

راشه منزرے شه په وړومبي صف کښې ودرېږه
که ګبـــــدړ ئي ځان له سترګې د بور مه اخله (احمدین)

**د ـــــ نه وتل**:- د قطار نه بهر وتل - د ګڼې ټول وغېره نه ځان جدا کول -

**صفا** :- (صَ+فا) (ع-صف) (۱) سوتره - پاکیزه - سپېځلي - نمانځي - (۲) صفایي - دوستي - (۳) د مکّې معظّمې په خوا کښې د یوې غونډۍ نوم چې حاجیان دديّ غونډۍ او د یوې بلې غونډۍ (مروه) تر مېنځه سعي کوي (منډې وهي) -

چې له زړونـــو پرېوځي خدا ے تـــه نۀ قبلېږي
که ولاړ پـــــــــه عرفات مروه صفـــــا وي (حافظ)

(۴) هوار - سطح لکه: د کاڼي صفا مخ - (۵) ښخي - بالکل لکه فلانے خو صفا لیونے دے - (۶) صحیح - سپین - لکه صفا خبره دا ده چې --- - (۷) هغه ځاے چې وابنۀ بُوټي وغېره پکښې نه وي لکه صفا مېدان دے - (۸) بې وېښتو - (۹) بې غلطي - سوچه لکه صفا پښتو وائي -

**ـــــ جواب ورکول**:- سکوټ جواب ورکول - ښخي انکار کول -

**ـــــ چټ**:- (تر - صف) بالکل صفا - ښخي صفا - چې هېڅ څیز پرې نۀ وي - لکه صفا چټ مېدان -

**ـــــ چټ مېدان**:- هغه مېدان چې هېڅ بوټي وابنۀ پرې نۀ وي - سپینه ډاګه -

**ـــــ صفا**:- سپین سپین - ښکاره - رښتیا رښتیا-

**ـــــ صفا وئیل**:- صفا خبرې کول - ښکاره ښکاره وئیل - هېڅ څیز پټ نۀ پرېښودل - سپینې سپینې وئیل -

**ـــــ کول**:- (۱) سُتره کول - پاکول - پاکیزه کول - (۲) خالص کول - ګند او غېر ضروري څیزونه ترې لرې کول لکه غنم صفا کول -(۳) صفایي کول - خبر یا دوړه وغېره نۀ پرېښودل - (۴) هر څۀ وړل - (په کور کښې) هېڅ نۀ پرېښودل -

**ـــــ کېدل**:- (۱) سوتره کېدل - پاکېدل - پاکیزه کېدل - (۲) دوړه - خیرے - یا ګند وغېره د څۀ څیز نه لرې کېدل - (۳) خالص کېدل - ګډون لرې کېدل - لکه: صفا شوي تېل - یا صفا شوي غنم - (۴) شک یا غلط فهمي وغېره لرې کېدل - لکه: خبره صفا شوه -

**ـــــ والے**:-(وا+لَے) (اس - صف ، ج - لي)صفایي - پاکوالے - پاکیزګي - سپېځلتوب

**ـــــ وئیل**:- صفا خبره کول - سپینه خبره کول -

**په سوله او ـــــ کښې** :- په روغه جوړه کښې -

**زړۀ ـــــ کول**:- د زړۀ نه کینه بغض یا شک شبه لرې کول -

**ږیره ـــــ چټ خرئیل**:- ږیره صفا خرئیل - (عموماً بربت ورسره وئیلے شي - یعني ږیره بربت ئې صفا چټ خرئیلي وو)

**کور ـــــ کول دچا**:- هر څۀ مال اسباب غلا کول یا لُوټل - هېڅ څیز ورته نۀ پرېښودل

**لاس ـــــ کول**:- په څۀ کار (لکه لیک) کښې مهارت حاصلول - مشق کول -

**لاس ـــــ کول** ، په چا :- لوټل - ښخي لوټ - ټال مال دولت وغېره ترې په دوکه او ټګۍ تر لاسه کول -

**معامله ـــــ کول**:-(۱) حساب کتاب صفا کول - بقایا نه پرېښودل -(۲) کومه معامله جګړه ، یا تنازعه فیصله کول -(۳) وژل - قتلول-

**مېدان ـــــ دے** :- په مېدان کښې هېڅ څیز نشته - هېڅ خنډ یا خطره نشته -

**مېدان ـــــ کول**:-(۱) په مېدان کښې هېڅ نۀ پرېښودل هر څۀ لرې کول - (۲) خنډان یا خطرې د مخې نه لرې کول -

**مېدان ـــــ کېدل**:- (۱) په مېدان کښې هېڅ نۀ پاتې کېدل - (۲) خنډان یا خطرې د مخې نه لرې کېدل -

**صفات** :- (صِ+فا+ت) (ع - اس - جم) د صفت جمع ده - (و--- صفت) ستاینې وصفونه

**ـــــ عالیه**:- (عا+لِي+يَ) (عف تر - اس - ج) لوړ صفتونه - د اعلیٰ درجې اوصاف -

لوړے صفتونه-

**اعلیٰ** ـــــ:-(ا+ع+لا) (ع تر-اس-ج) لوړ صفتونه-د اوچتې درجې ښۀ صفتونه-

**ذاتي** ـــــ:-(ذا+تي) (عف تر-اس-ج) هغه صفتونه چې د چا د خپل ذات برخه وي-ځاني صفتونه-

**ضميره** ـــــ:-(ضَ+مي+رَ) (عف تر-اس-ج) پټ صفتونه-پوشېده صفات-

**صفاتي** :-(ص+فا+تي) (عف تر-اس-مو) صفتونو سره متعلق-يا صفتونو ته منسوب-هغه نومونه وغېره چې د چا اوصاف سره تعلق لري-لکه غفور او رحيم د الله پاک صفاتي نومونه دي-

**صفار** :-(ص+فا+ر) (ع-ا س، ج) د "صفر" جمع ده-

**صفار** :-(صَ+ف+فا+ر) (ع-اس-مذ) د تانبې لوښي وغېره جوړونکے-ټټهار-

**صفار** :-(صَ+ف+فا+ر) (اس-مع) د صفاري بادشاهانو د خاندان باني يعقوب بن لېث-

**صفاهان** :-(صَ+فا+ها+ن) (اس مع) د اصفهان بدل شکل-اصپهان هم ورته وائي-

**صفائي** :-(صَ+فا+ئي) (اس-مو) (۱) پاکيزګي-سترګواے-پاکوالے-سپېځلتيا-د خېرې-ګند وغېره نه پاکي-(۲) صلح-روغه-(۳) هېڅ نۀ پاتې کېدنه-

ـــــ **کول**:-(۱) ځاے جارو کول-د فرنېچر وغېره نه دُوړې څنډل-(۲) بې ګناهي ثابتول-د بې ګناهۍ دليلونه ورکول-د چا د بې ګناهۍ په حقله بيان ورکول-

ـــــ **کول د کور وغېره**:-د چا د کور وغېره نه ټول مال سامان او اسباب وغېره وړل (دغلو) کار جارو کول د چا-

**په صلحې ـــــ وغېره**:-بغېر د جنګ جګړې-بغېر د زړۀ بداوي د حقيقت حال د څرګندونې او روغې جوړې سره-په امن او روغې سره-

**د زړۀ** ـــــ:-په زړۀ کښې شک شبه ياکينه بغض نۀ لرل-

**دلاس** ـــــ:-په مدارتوب کښې د لاشونو په اړولو را اړولو دوکه ورکول-د لاس کمال-دوکه فرېب-

**د ـــــ ګواه**:-(ګَ+وا) (عپ تر-اس-مذ، ج-ان) هغه ګواه چې د ملزم د بې ګناهۍ په حقله بيان ورکوي-

**د ـــــ وکيل**:-(وَ+کي+ل) (عپ-تر-اس-مذ، ج-ان) هغه وکيل چې د ملزم د طرفه د هغه د بې ګناهۍ دليلونه وړاندې کوي-

**صلح** ـــــ:-شک شکوک لرنه کېدنه او صلح کېدنه-صلح او روغه-دښمني لرې کوونه يا کېدنه-

**صلح ـــــ راتلل**:-روغه کېدل-روغه جوړه راتلل-تعلقات ښه کېدل-دښمني او مخالفت نۀ پاتې کېدل-

**صلح ـــــ کول، د چا په منځ**:-روغه کول-روغه جوړه راوستل-دښمني او مخالفت لرې کول-

**صفائي** :-(صَ+فا+يَ+ي) (۱) د "صفای" اضافي او مجروري شکل دے-(۲) د "صفای" جمع ده-

**صفت** :-(صي/ص+فَ+ت) (ع-اس-مذ، ج-ونه) (۱) د حال بيان-تعريف-ستائنه (۲) د صرف په علم کښې صفت هغه اسم دے چې ترې د بل کوم اسم څۀ خصوصيت يا خاصيت څرګندېږي-

ـــــ **ثنا**:-(ثَ+نا) (ع تر-اس) تعريف او ستائنه-د چا ښۀ والي يا خوبۍ بيانول-

ـــــ **کول**:- تعريف کول-ستائنه کول-

که عطار د خپلو مښکو کا صفت

په دا څۀ خوئې روان شي نکهت (خوشحال)

ـــــ **مشبه**:-(مُ+شَ+ب+بَ) (عف تر-اس-مذ) په قواعد (صرف) کښې هغې اسم صفت ته وائي چې په کښې وصفي معنٰی همېشه د پاره موندلے شي-

ـــــ **موصوف**:- (مَو+صُو+ف) په قواعد (ګريمر) کښې هغه مرکب چې يو لفظ پکښې د صفت وي او بل هغه چې صفت ئې شوے وي-لکه "ښه سړے"

**د ـــــ لائق**:-(لا+ئِ+ق) ----------------------

**د قابل** ـــــ:-(قا+ب+ل) ----------------

**د ـــــ وړ**:- (وُ+ړ) هغه کس يا څيز چې د ستائنې وړ وي-يعنې څۀ داسې خوبۍ او ښېګړې لري چې د صفت حق لري-ډېر ښۀ-

**صفتېنه** :-(صي/ص+فَ+ت+ن+ړَ) (عپ تر-اس-مو، ج-ړې) ډېر صفتونه کوونکې ښځه-

**صفتو** :-(صي-ص+تَ+تُو) (عپ تر-صف مذ) ډېر صفتونه کوونکے-ډېرې مدحې ويونکے-

**صفتونه** :-(ص/صي+فَ+تُو+نَ) (اس-ج) د صفت جمع ده-تعريفونه-ستائنې-

ـــــ **کول**:- تعريفونه کول-ستائنې کول-(عموماً د مبالغې په طور وئيلے شي)

ـــــ **ئې راته مه کوه**:-ستائنې ئې راته مه کوه-په داسې موقع وئيلے شي چې څوک د داسې کس يا څيز تعريفونه کوي-څوک چې د دغو تعريفونو وړ نۀ وي يا ئې مخاطب صفتونه اورېدل نۀ غواړي-

**صفتي** :-(صي/ص+فَ+تي) (فپ تر-اس-مو) (۱) صفت سره تعلق لرونکے-لکه صفتي کلمه-(۲) د صفت وړ-لکه ډېر صفتي سړے دے-قابل تعريف-

**صفح** :-(صَ+ف+ح) (ع-اس) بخښنه-معاف کوونه-

ـــــ **کول**:-معاف کول-بخښل-درګذر کول-پل کول-

**صفحات** :-(صَ+ف+حا+ت) (ع-اس-ج) د صفحه جمع ده-

**صفحه** :-(صَ+فَ+ه) (ع-ا س-مو، ج-يې) (۱) د (کاغذ) پاڼې يو مخ-(۲) د هر هوار څيز مخ-(۳) مطلق مخ-

ـــــ **بندي**:-(بَ+ن+دي) (عف تر-اس-مو) جوړونه-د ټائپ-د حرفونو په صفحو کښې تقسيمول-

ـــــ **زمين**:-(زَ+مي+ن) (عف تر-اس-مو) د زمکې مخ-د زمکې برنۍ حصه-

ـــــ **هستي**:-(هَ+س+تي) (عف تر-مو) د وجود مخ-مراد ترې وجود يا موجودګي ده-عموماً د ورکول يا محو کول سره راځي-لکه د صفحه هستۍ نه ورکول يعني ښخي ورکول-د موندِه وښکل-نيست نابود کول-

ـــــ **د سپوږمۍ**:-(عپ تر-مذ) د سپوږمۍ سطح-د سپوږمۍ مخ-

**صفدر** :-(ص+ف+دَ+ر) (ع-صف-مذ، مو-ه) (۱) صفونه شلوونکے-د شمر لښکر شلوونکے-(۲) ډېر بهادر-جنګيالے-توريالے-(۳) د حضرت علي رضي الله عنه لقب-

ـــــ **کېدل**:-صفونه شلول-په جنګ کښې توره مېړانه ښودل-

د رستـــــــــم د مړنتوب خبـــــرې اورم

ولې څـــوک به بې لښکره صفدر نۀ شي

(خوشحال) **صفر** :-(صَ+فَ+ر) (ع-اس-مذ) د قمري تقويم د کال دويمه مياشت سپره چې د عاشورې مياشت (محرم) نه وروستو راځي-

د ښځو خيال دے چې په دې مياشت اتلس زره (يعنې ډېرې) بلاګانې را ايله کړے شي-ځکه دا مياشت سپېره ګڼلے شي-

سَپره ووته بلا ووته-(متل)

**صِفر** :-(صِ+ف+ر) (ع-ا س-مذ، ج-ونه) (۱) خالي-هېڅ نه-تش-(۲) د حساب د علم هغه علامت چې صفر د پاره مقرر شوے دے يعني (٥)

(انگ :ن) زیرو -(۳) لائق - کم عقل - ناپوهه - لاشے -

**تر ـــ لاندې**:- (عپ تر) د صفر لاندې - نیشت - هیڅ -

**صفرا** :- (صَ+ف+را) (ع - اس - مو) (۱) په څلورو خلطونو کښې د یو خلط نوم - چې زیړ رنګے دے -(۲) د زیړ رنګ څیز -

**ـــ راماتېدل**:- د صفرا د زیاتي له کبله د پوزې نه وینې روانېدل -

**ـــ ماتېدل**:- تسله کېدل - مړېدل - خواهش پوره کېدل - په دې لړه شان حلوا خو زما صفرا نۀ ماتېږي -

**صفراوي** :- (صَ+ف+را+وي) (عف تر - صف) صفرا سره تعلق لرونکے - د صفرا - زیړاوي -

**ـــ تبه**:- ملېریا -

**ـــ مزاج**:- (م+زا+ج) (عف تر - صف ، مذ ، مو - ه) هغه کس چې په څلورو اخلاطو کښې د صفرا خلط پکښې زیات وي -

**صفوت** :- (صُ+ف+وَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) چونړ کېدنه - غوره کېدنه - برګزیدګي -

**صفورا** :- (صَ+فو+را) (اس مع) د حضرت شعیب علیه السلام د لور نوم چې موسیٰ علیه السلام ته وادۀ شوې وه - حضرت موسیٰ علیه السلام ددې دپاره د حضرت شعیب علیه السلام لس کاله ګډې څرولې وي -

**صفوف** :- (صُ+فُو+ف) (ع - اس - ج) (۱) جمع ده - قطارونه - ځیړي - (۲) صفوف - پوډر - (دا عموماً س سره لیکلے شي) -

**صفونه** :- (صَ+فُو+نَ) (اس - ج) د صف جمع ده - صفوف - قطارونه -

**ـــ جوړول**:- خلق په قطارونو کښې اودرول - د نمانځه د پاره د خلقو قطارونه سمول -

**صفه** :- (صُ+ف+فَ) (ع اس - مو ، ج - صفې) (۱) دالان - څپر - (چې عموماً د کور ورته مخامخ جوړلے شي - د ناستې د پاره) (۲) دنقاچه - دېچپه - ډپه - ډبه - دُوکاچه -

**اصحابِ ـــ** :- (اَ+ص+حا+ب) (عف تر - اس - ج) په څپر یا دالان کښې کښېناستونکي اصحاب - مراد ترې اصحابیان رضي الله عنهما دي چې ډېر غریبانان وو - د حضور صلعم په جماعت کښې یو څپر جوړ کړے شوے وۀ - هلته ئې استوګنه لرله او ټول وخت به ئې په عبادت کښې تېرولو -

**صفي** :-(صَ+في) (ع - اس) (۱) غوره شوے - چونړ کړے شوے - برګزیده - خالص صفا -(۲) دوست - مخلص - ربښتینے (دوست) - (۳) د حضرت ادم علیه السلام لقب دے - (صفي الله) (۴) سُتره - سپېځلے -

**صفیر** :- (ص+في+ر) (ع - اس - مذ) (۱) د مرغو اواز - چغار - (۲) شپېلۍ -

**صفیه** :- (صَ+في+يَ) (اس - مع) د رسول پاک صلعم د یوې بي بي (ام المؤمنین) نوم دے چې د خیبر رئیس حُسي لور وه - د خیبر په غزا کښې د قیدي په حیث ګرفتاره شوې وه - ددې په درخواست نکاح ئې رسول پاک صلعم سره شوے وۀ - هر کله چې باغیانو حضرت عثمان رضي الله عنه محصور کړو نو دې بي بي به هغۀ ته خوراک رسولو -

**صفین** :- (ص+ف+في+ن) (اس - مع) په عراق کښې رقه ته نزدې د فرات سیند په غاړه د یو مقام نوم دے چېرته چې د حضرت علي رضي الله عنه او د حضرت معاویه رضي الله عنه تر مېنځه په ۳۷ هجري کښې جنګ شوے وۀ - په دې کښې ډېر صحابه کرام رضي الله عنهما له دواړو اطرافو شهید شوي وو -

**صقر** :- (صَ+ق+ر) (ع ، اس - مذ) شنقار - مشهور ښکاري مارغۀ - ښرخ -

**صقالت** :- (ص+قا+لَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) صیقل کونه - ځلونه - صفاکونه

**صقلي ګر** :- (ص+ق+لي+ګَ+ر) (اس - صف - مذ) صیقل ګر -

**صقیل** :- (صَ+قي+ل) (ع - صف - مذ ، مو - ه) صیقل شوے - صفا شوے - ځلقولے شوے -

**صل** :- (صَ+ل) (اس عدد) سل - پینځه شلې -

**صلا** :- (صَ+لا) (ع - اس - مو ، ج - ګانې) بلنه - دعوت - ست -

ګل د عشق دے غوړېدلے د عاشق ته ده صلا (خوشحال)

**ـــ کول**:- ست کول - بلنه ورکول -

څۀ ګنده عالم دے مه ئې دود وے مه ئې رسم
وړے پــــــه ځاے پرېږدي و مړو ته صلا کا (خوشحال)

**صلائې عام** :- (صَ+لا+عا+م) (عف تر - مذ) عامه بلنه - د عام دعوت - د څۀ کار (مقابلې وغیره) د پاره عامو خلقو له چېلنج ورکول -

**صَلا** :- (صَ+لا) (ع - اس - مو ، ج - ګانې) صلاح - مشوره - راے - مصلحت - (د عربۍ د "صلاح" بدل شکل دے) -

**ـــ کول**:- صلاح کول - مشوره کول - مصلحت کول -

**ـــ کېدل**:- رضا کېدل - رضامند کېدل -

**په رضا ـــ**:- (پَ+رَ+ضَا) په خوشحالۍ - په خپله خوښه - بغېر د جګړې یا د مزاحمت نه -

**صلابت** :- (صَ+لا+بَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه)(۱) سختي - کلکوالے - ټینګوالے

روغ سلامت زړۀ به غمزه غوڅ کا سیاه چشمې
نشته صلابت د غـــوښې هېڅ تېرۀ سکین ته (حافظ)

(۲) د مسلمانانو په نومونو او القابو کښې استعمالېږي - لکه صلابت جنګ -

**صلات صلاۀ** :- (صَ+لا+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) د صلات بدل شکل دے - (چې عربۍ او نورو ژبو کښې په دې ډول هم لیکلے کېږي - په قران پاک کښې د صلوٰت په شکل کښې لیکلے کېږي) - دعا - نمونځ

**صلاح** :- (صَ+لا+ح) (ع - اس - مو ، ج - ګانې)(۱) مشوره - راے - (۲) نېکي - خوبي ښېګړه - (د فساد ضد دے) - (۳) صلح - روغه جوړه -

**ـــ اخیستل /اغیښتل**:- مشوره اخیستل - راے پوښتل -

**ـــ اندېش**:- (اَ+ن+دي+ش) د ښېګړې سوچ فکر کوونکے - خېر اندېش -

**ـــ دا شوه چې**:- اخري فیصله په دې (خبره) شوه چې -

**ـــ غوښتل**:- د چا نه مشوره غوښتل - راے غوښتل -

**ـــ کار**:- (کا+ر) (ف تر - اس - مذ ، ج - ان) (۱) صلاح ورکوونکے - مشوره ورکوونکے - (۲) نېک سړے - ښۀ سړے -

**ـــ کاره**:- (کا+رَ) (ف تر ا س ، مو ج - رے) د صلاح کار تانیث -

**ـــ کول**:- (۱) مشوره کول - راے اخستل - (۲) صلح کول - روغه کول -

**ـــ کېدل**:- رضا مند کېدل - (خصوصاً د شورې نه پس)

**ـــ مصلحت**:- (مَ+س+لا+ت) صلاح او مشوره -

**ـــ مصلحت**:- صلاح او مشوره کول - د یو بل نه راے اخستل -

**ـــ ورکول**:- مشوره ورکول - راے ورکول -

**په رضا ـــ**:- (پَ+رَ+ضا) په رضا سره - په رضا مندۍ او صلحې سره - بغېر د څۀ جګړې یا د مزاحمت نه -

**ستا په ـــ موصلاح ده**:- ستا په راے زمونږ راے ده - چې څۀ ستا خوښه وي هغه زمونږ خوښه ده -

**ـــ صلاح الدین ایوبي**:- (حُ+د) دي+ن+اَ+یُو+بي) (اس - مع) د مصر او شام بادشاه (۱۱۳۸ نه تر ۱۱۹۳ ء) د یورپ دعیسائیانو د صلیبي جنګونو په وجه مشهور دے - نرنتوب، جنګلیالي توب او زمرتوب

نه علاوه د خپلو لوړو اخلاقوپه وجه دښمنانو هم دده تعریف کولو - د بیت المقدس فاتح وه -

**صلاحیت** :- (صَ+لا+حي+يَ+ت) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) (۱) نېکي-ښۀ والے - ښېګړه - (۲) قابلیت - استعداد - وړتیا -

**ـــــ دار**:- (دا+ر) (عف تر-صف ، مذ ، مو-ه) صلاحیت لرونکے - اهلیت لرونکے -

**ـــــ دارځاے**:- (د)+زا+ے) شائسته - قابلیت واله ځاے -

**ـــــ دار مقامات**:- (مُ+قا+ما+ت) د صلاحیت واله مقامونه - شائسته یا د قابلیت واله مقامات یا درجې -

**ـــــ لرل**:- قابلیت لرل - استعداد لرل - اهلیت لرل -

**ـــــ نامه**:-(نا+مَ) (۱) صلح نامه - روغ لیک - (۲) د قابلیت سند -

**د ـــــ مینده کول**:- صلاحیت حاصلول - لیاقت پیدا کول -

**صلح ـــــ (سره)**:- امن او روغې او جوړې سره - بغېر د جنګ جګړې نه -

**صلب** :- (صُ+ل+ب) (ع-اس-مذ) (۱) د ملا د تیر مهرې - شمتري - (۲) نسل - نطفه - پشت -

دوست چې د بدانو وۀ کنعان په طوفان غرق شو
وۀ پېـــــدا د نوح نبي له پاکه صلبه پشته (حافظ)

**د ـــــ نه**:- (د پشت نه - د نسل نه - د نطفې نه - د اولاد نه -

**صلح** :- (صُ+لَ+ح) (ع-اس-مو ، ج-ے) روغه - جوړه - اشتي - (د جنګ فساد ضد) (ځینې خلق ئې د "سوله" په شکل کښې هم لیکي) -

**ـــــ امېز**:-(ا+مي+ز) (ف تر-صف-مذ ، ج-ه) (۱) د صلحې رنګ لرونکے - د روغې جوړې رنګ لرونکے - (۲) (رق) امن پسنده - لکه د اتومي انرژي صلح امېزه استفاده -

هم پخپله جنګ اغاز کا جنګیـــالي
هم پخپله صلح کانـــدي صلح امېزه (خوشحال)

**ـــــ پسند**:-(پَ+سَ+ن+د) (ف تر-صف-مذ ، مو-ه) صلح خوښوونکے - روغه جوړه خوښوونکے -

**ـــــ پسندي**:- (پَ+سَ+ن+دي) (ف تر-اس-مو) د صلحې خوښونه - روغه جوړه خوښوونه -

**ـــــ جو**:-(جُو) (ف تر-صف) صلح لټوونکے - صلح پسند -

**ـــــ جویانه**:- (جو+یا+نَ) (ف تر-صف) صلح او روغه لټونکے - لکه صلح جویانه نظریات -

**ـــــ خواه**:- (خ+وا+ه) (ف تر-صف) صلح غوښتونے - روغه جوړه غوښتونکے - لکه صلح خوهانه سیاست -

**ـــــ خواهان**:- (خ+وا+ها+نَ) (ف تر-صف) د صلحې غوښتلو په انداز - د روغې جوړې د خوښولو په طریقه -

**ـــــ خواهي**:- (خ+وا+هي) (ف تر-اس-مو) صلح غوښتنه - روغه جوړه خوښوونه -

**ـــــ صفاي**:- صَ+فا+ی) (عف تر-اس-مو) شک شکونه لرې کوونه او صلح کوونه - روغه جوړه - دښمني لرې کېدنه -

**ـــــ صفاي کول**:- روغه جوړه کول - دښمني - شکوک وغېره له مېنځه ویستل - ښۀ واقعات بیا قایمول -

**ـــــ غوښتونکے**:- (غُ/خ/ش+تُو+ن+کَے) (اس فا-ج-کي) (۱) د صلحې خواست کوونکے - روغه غوښتونکے - روغه جوړه خوښوونکے -(۲) امن پسند -

**ـــــ کُل**:- (کُ+ل) (ف تر-صف-مذ ، مو-ه) د یو مذهب منونکو سره هم مخالفت او دښمني نۀ لرونکے - هر چا سره په صلح صلاحت اوسېدونکے - دوست دښمن هر چا سره ښۀ سلوک لرونکے - د هر چا خېر خواه - بې تعصبه -

**ـــــ کول**:- روغه کول - اشتي کول - نچلا کېدل - مخالفت او دښمني ختمول -

هم پخپله جنګ اغاز کا جنګیالي
هم پخپله صلح کاندي صلح امېزه (خوشحال)

**ـــــ کېدل**:- روغه کېدل - اشتي کېدل - جوړه کېدل - پُخلا کېدل - مخالفت او دښمني ختمېدل -

**ـــــ نامه**: (نا+مَ) (عف تر-مو ، ج-مې) هغه دستاویز (کاغذ) چې د دووۀ کسانو یا ټولو په مېنځ کښې د صلحې شرطونه پکښې لیکلي شوي وي او دواړو ډلو پرې دستخطونه کړي وي - د صلحې د شرطونو امضا شوے کاغذ - روغه لیک -

**صلحاء** :- (صُ+ل+حا) (ع-ج) د صالح جمع ده - نېک خالق - ښۀ سړي -

**صلحه** :- (صُ+ل+حَ) (اس-مو ، ج-صلحې) د "صلح" بدل تلفظ دے - (و---- صلح)

**ـــــ سره کول**:- په خپله کښې روغه کول - یا بل سره صلح کول -

**ـــــ کول**:- (و---- صلح کول)

**ـــــ نامه**: (نا+مَ) (و-------- صلح نامه)

**صلحې** :- (صُ+ل+حې) (۱) د "صلح" اضافي او مجروري شکل دے - (۲) د صلح جمع ده -

**د ـــــ مذاکرات**:- (مُ+ذا+کِ+را+ت) (عپ تر-اس-ج) د روغې جوړې په حقله خبرې اترې -

**صلصال** :- (صَ+ل+صا+ل) (ع-اس-مذ) اغړلې خاوره - وچه خاوره چې لاس پرې ووهلے شي نو اواز ورکوي - وچه خټه -

محبت د همـائې سیوره ده کـه څۀ دے
که کیمیا دې زر کوي ، سنګ و صلصال (خوشحال)

**صلصل** :- (صُ+ل+صا+ل) (ع-اس-مذ) ګوګوشتکه - ککوښه - کړکړې -

**صلعم** :- (ص+ل+ع+م) (مخففات) (ص-ل ، ع-م) دا حروف د صلي الله علیه وسلم مخفف دے - صرف په لیک کښې د اختیار دپاره راځي - په دنیا کښې دغه پوره جمله وئیلے شي -

**صلوٰت** :- (ص+وَ+لا+ت) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) (۱) نمونځ - مونځ - (۲) دعا (۳) درود (په پېغمبر او په فرښتو) (صلات یا صلاه هم لیکلے شي) خو په قران مجید کښې په دغه برني شکل لیکلے کېږي) -

پیشکشي مې د عمل په مخکښې نوره نشته
زۀ به همېش دربانـــدې وایمـــه صلوٰت نبي (خواجه محمد)

**ـــــ التسبیح**:- (تُ+ت)(تَ+س+بي+ح) (ع تر-اس-مذ) هغه نفل نمونځ چې د قیام په وخت په کښې پنځلس ځله او په رکوع ، دواړه سجدو کښې ، د سجدو په مېنځ کښې د ناستې په وخت او بیا د دویمې سجدې نه پس په ناستې - لس لس ځله سبحان الله ، الحمد الله ، لااله الاالله او الله اکبر لوستلے شي -

**ـــــ الخوف**:- (تُ+ل+خَو+ف) (ع تر-اس-مذ) د ویرې د وخت نمونځ - د غزا په وخت چې دښمن د طرفه خطره وي او د نمونځ وخت شي - په داسې موقع نیم لښکر اول نمونځ وکړي او چې هغه فارغ شي نو پاتې نیم لښکر خپل مونځ وکړي -

**ـــــ الوسطی**:- (تُ+ل+وُ+س+طا) (عر تر-اس-مذ) د مېنځ د وخت نمونځ - په قران مجید کښې ددې نمونځ ذکر راغلے دے خو تصریح ورسره نشته چې ددې نه د کوم وخت نمونځ مراد دے - (د علماؤ په دې کښې اختلاف دے) -

**صـــــلوات** :- (ص+وَ+لَ+وا+ت) (ع-اس-ج) د صـــلوٰت جمـــع ده - درودونـــه -

دعاگانې د خدای رحمت -

**ـــــ الله**:- (تُ+ل+لا+ه) (ع تر - جمله) د خدای پاک درود - د الله پاک رحمت -

**صلحه** :- (ص+لَ) (ع - اس - مو ، ج - صلې) (۱) بخشیش - انعام - عطا - ورکړه - بخښنه - (۲) بدله - بدل - عرض -

**ـــــ رحم**:- (ر+ح+م) (عف تر - اس - مذ) خپلوانو او رشته دارانو سره ښه سلوک لرل -

**ـــــ ورکول**:- (۱) بدله ورکول - بدل ورکول - (۲) انعام ورکول -

**ـــــ موصول**:- (مَو+صُو+ل) (ع تر - اس) په نحو د موصول اسلم او بیا ورپسې دغې اسم جواب - صله موصول بللے شي -
لکه څۀ چې ماتاته وئیلي وو -
اسمِ موصول صله هغه بالکل درست دي -

**صـلی الله علیـه وسـلم** :- (ص+ل+لَ+لاّ+ه+ع+لَے+ه+و+س+ل+ل+م) (عـر جملـه) مسلمانان چې هر کله د خپل پېغمبر نوم اخلي یا بل نه واوري نو دا جمله احتراماً وائي - معنٰی ئې ده چې په هغه دې د الله رحمت او سلام وي -

**صلیب** :- (ص+لي+ب) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) سولۍ - هغه دوه سرۀ لرگي - چې یو په زمکه کښې ښخ کړے شي او ښغ ودرولے شي او بل پرې برابر په افقي انداز ورسره کلک وتړلے شي - یا په مېخونو ټک وهلے شي - په دې شکل پخوا به مجرمانو لـه د مرگ سزا په دې صلیب ورکولے شوه چې لاسونه پښې به ئې په مېخونو سره په دغې صلیب ټک وهلے شو - دغه شان به د مېخونو په زور زوړند شو او اخر به مړ شو -
(۲) د عیسایانو عقیده ده - چې حضرت عیسیٰ علیه السلام په دغه شان صلیب خېژولے شوے وۀ -

**صلیبون** :- (ص+لي+بي+يُو+ن) (ع تر - اس - ج) صلیبیان - صلیب سره متعلق - عیسائیان -

**صماخ** :- (ص+ما+خ) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) د غوږ سُورے - د غوږ شپېلۍ -
غه خبرې چې بې ستا له مخه کېږي
لـــه هغـــو خبرو ونیـــوے صماخ — خوشحال

**صمت** :- (ص+م+ت) (ع - صف ، مذ ، مو - ه) خاموشي - چپ والے - غلے توب -

**ـــــ کېدل**:- چپ کېدل - خاموشه کېدل - غلے کېدل - گونگے کېدل -

**صمد** :- (ص+م+د) (ع - صف) (۱) بې نیازه - هغه چې د هېچا محتاجه نه وي - (او نور ئې محتاجه وي) - (۲) لوړ - (۳) د خدای پاک یو صفاتي نوم -

**صمداني** :- (ص+م+دا+ني) (عر ، تر ، صف) (۱) ابدي - دائمي - تل تر تله پاتې کېدونکے - (۲) خدائي - (۳) د مسلمانانو په نومونو کښې راځي -

**صمدیت** :- (ص+م+دي+ي+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) بې نیازي - نامحتاجي -

**صمدین زئ** :- (ص+م+دي+ن+ز+ئ) (اس - مع) دا د عیسیٰ خېلو څانگه ده او عیسیٰ خېل ، سناټیه کاکړ دي -

**صمصام** :- (ص+م+صا+م) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) غوڅوونکې توره - تېره توره -

**ـــــ الدوله**:- (م+د)دَو+لَ (عف تر - صف) یو خطاب چې مسلمانانو بادشاهانو ته به خپلو امیرانو ورکولو -

**صمغ** :- (ص+م+غ) (ع - اس - مذ) چیږ - گونډ - کنډ - کنډوري -

**ـــــ عربي**:- (ع+ر+بي) (عف تر - اس - جم) هغه کنډ کوم چې د عربو د ملک د کیسکرد د ونو نه اخستے شوے وي - دا په داروگانو کښې استعمالېږي

**صُمٌ** :- (ص+م+م+م) (ع - اس - ج) دا صم جمع ده - کوڼ - (پښتو کښې دا لفظ عموماً بُکم سره یا ځای راځي) -

**ـــــ بکم**:- (ب+ک+م+ن) (ع - تر) (بُکم دا بکم جمع ده چې معنٰی ئې گونگے ده) کوڼ گونگے - البنگ - مجازاً هغه سړے چې چپ چاپ شي - هېڅ جواب نۀ ورکوي - لکه چې کوڼ او گونگے وي - (دا لفظونه اصلاً د قران پاک ددې ایت نه اخستے شوي دي - ( صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ )

**صمیم** :- (ص+مي+م) (ع - صف - مذ ، مو - ه) خلاصه - خلوص - خالص - نوټړے (پښتو کښې عموماً د قلب سره یو ځای راځي)

**ـــــ قلب**:- (ق+ل+ب) (عف تر - صف) د زړۀ د روژې نه - د زړۀ د اخلاصه - د زړۀ د کومي نه -

**صمیمانه** :- (ص+مي+ما+ن) (عف تر - صف) د زړه له خلوص سره - مخلصانه - د زړۀ له اخلاصه -

**صیمي** :- (ص+مي+مي) (عف تر - اس - مو) مخلصانه - خلوص واله -

**صمیمت** :- (ص+مي+مي+ي+ت) (ع - اس - مذ) د زړۀ خلوص - د زړۀ مینه - ربښتیا گلوي

**صنادید** :- (ص+نا+دي+د) (ع - اس - مذ) د صندید جمع ده - بزرگان - سرداران مشران - معتبر او عزت واله خلق -

**صناع** :- (ص+ن+نا+ع) (ع - اس - مذ ، ج - ان) صنعت گر - کاریگر - هنر مند - د څیزونو جوړوونکے -

**صناعت** :- (ص+نا+ع+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) کاریگر - دستکاري - هنرمندي - پېشه

**صناعتي** :- (ص+نا+ع+تي) (عف تر - اس - مو) صنعتونو سره تعلق لرونکے -

**صناعي** :- (ص+نا+عي) (عف - تر - اس - مو) صنعت سره متعلق - د صنعت کارخانې سره متعلق -

**صـنائع** :- (ص+نا+ئے+ع) (ع - اس - ج) (۱) س صنیع جمع - نیکي - هنرونه - ایجادونه - (۲) په شعر کښې د الفاظو په استعمال کښې باریکۍ ، نزاکتونو او شعري هنر مندي - (دا لفظ عموماً بدائع سره یو ځای راځي)

**ـــــ و بدائع**:- (و+)+دا+ئے+ع) (عف تر - اس - ج) هغه عجیبه باریکۍ او نکتې چې په کلام (شعرونو) کښې وي -

**صنایع** :- (ص+نا+ي+ع) (ع - اس - ج) صنعتونه - کاریگري - مصنوعات -

**ثقیل ـــــ**:- (ث+قي+ل) (ع تر - اس - ج) درانۀ صنعتونه -

**خفیف ـــــ**:- (خ+في+ف) (عف تر - اس - ج) هغه صنعتونه چې د سپک سپاندو څیزونو د جوړولو سره تعلق لري - وارۀ صنعتونه -

**درانۀ ـــــ**:- (د+را+ن) (عپ تر - اس - ج) درانه صنعتونه - هغه صنعتونه چې لویو او درنو څیزولو د جوړولو سره تعلق لري -

**د لاس ـــــ**:- (د+لا+س) (عپ تر - اس - ج) هغه صنعتونه چې د مشین په ځای په لاس جوړولے شي -

**سپک ـــــ**:- (س+پ+ک) (و -------- خفیف صنائع)

**سنگین ـــــ**:- (س+ن+گي+ن) (و -------- درانه صنائع)

**ظریف ـــــ**:- (ظ+ري+ف) (عف تر - اس - ج) فنون لطیفه - فائن ارټس -

**کلیولي** :- (ک+لي+و+لي) (عپ تر - اس - ج) هغه صنعتونه چې په کلو کښې قائم شوے وي - وارۀ صنعتونه -

**لاسي ـــــ**:- (لا+سي) (و --------- د لاسي صنائع)

**نفیس ـــــ**:- (ن+في+س) (عف تر - اس - ج) فنون لطیفه - فائن ارټس -

**صنائعو** :- (ص+نا+ئے+ع) د "صنائع" اضافي او مجروري شکل -

**د ـــــ ورکول**:- (م+ک+ت+ب) (اس - مذ ، ج - ونه) هغه مدرسه یا سکول چې پېشه ورانه تعلیم ورکولے شي - د فنونو د زده کړې سکول - ټیکنیکل سکول -

**صُندق** :- (ص+ن+د+ق) (اس - مذ ، ج - ونه) صندوق - بکس -

**صندقچه** :- (ص+ن+د+ق+چ) (اس - مو ، ج - چې) وړوکے صندوق - وړوکے بکس - بکس گوټے -

**صندقچی** :- (صُ+ن+دُ+ق+چ+ی) (اس - مو) وړوکے صندوق - بکس ګوټے -

**صندقچے** :-(صُ+ن+دُ+ق+چے) (اس - مذ ، ج - چې) وړوکے صندوق - بکس ګوټے

**صندل** :- (صَ+ن+د+ل) (ع - اس جم) مشهور خوشبویه لرګے - چندڼ -

**د ـــ بُوره**:- (بُو+رَ) (فپ تر - اس مو ، ج - رې) د چندڼ د لرګي هغه ریږے شان کوم چې د لرګي په سوهان کولو (یا په اره کولو) تـرې رادوړیږي - د چندڼ د لرګي بوره چې په دارو یا شربتونو جوړولو کښې پکارولے شي یا د خوشبوئ د پاره په اور کښېښودلے شي -

**صندله** :- (صَ+ن+دَ+لَ) (ع - اس - مو ، ج - لے) سینډل - د پښو خاص قسم پیزار چې په تسمو تړلے کېږي -

**صندلی** :- (صَ+ن+دَ+لَ+ی) (ف - اس - مو)(۱) کرسی - چوکی - (۲) هغه چوکی چې په ژمي کښې د لاندې ترینه انګیټۍ کښېږدي او د پاسه پرې یوه لویه برستن واچوي او چار چاپېره ترېنه برستنه کښې خلق کښېني -

**صندلي** :- (صَ+ن+دَ+لي) (فپ تر - صف مو) د صندل یعنې د چندڼ د ونې یا لرګي سره تعلق لرونکے - چندڼو سره متعلق -

**صندوق** :- (صَ+ن+دُو+ق) (ع - اس - مذ ، ج - ونه/ان)(۱) بکس - (عموماً د لرګي جوړ شوے بکس) - صُندوق - سنُدوخ - تپونړ - (۲) تابوت (د مړي) -

**ـــ دار**:- (دا+ر) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) صندوق لرونکے - د صندوق حفاظت کوونکے

**ـــ د سینې**:- (دَ+سي+نې) (فپ تر - اس - مذ) د پوښتو مجموعه یا پنجره چې په کښې دننه زړهٔ ، پرپوس او نور اهم اعضاد وي - ګوګل -

**ـــ کول**:- په صندوق کښې کښېښودل - په صندوق کښې محفوظ کول -

**ـــ کېدل**:- په صندوق یا بکس کښې کښېښودل - په بکس یا صندوق کښې محفوظ کېدل -

**د پس انداز ـــ**:- (دَ+پَ+س+اَ+ن+دا+ز) د بچت پیسې تخې د جمع کولو صندوق یا بکس - هغه بنده صندوقچه په کومه کښې چې د پیسو ټکو د اچولو د پاره سورے پرېښودلے شوے وي -

**د معاونت ـــ**:- (دَ+مُ+عا+و+نَ+ت) د امداد د رقم د جمع کولو صندوق یا صندوقچه - د چندې د جمع کولو بکس -

**صندوقچه** :- (صَ+ن+دُو+ق+چَ) (اس - مذ ، ج - چې) وړوکے صندوق - صندوق ګوټے بکس ګوټے - هرېږے (دوت) - (صندوق یا صندقچه عموماً د لرګي وي او د وسپنې وغېره بکس ته وئیلے شي) -

**صندوقچی** :- (صَ+ن+دُو+ق+چ+ی) ----------------

**صندوقچي** :- (صَ+ن+دُو+ق+چي) (اس - مو) د صندوقچه تانیث دے -

**صنع** :- (صَ+نَ+ع) (ع - اس - مو) (۱) کاریګري - هنر - (۲) پیدا کونه - جوړوونه - سازونه - رغونه - رغاوے -

د هغــــه نقاش پـــــه منع نظـــر نه کا
چې له څهٔ څاځکي نه دا نقش طراز کا (خوشحال)

**ـــ کول**:- جوړول - سازول -

صانع صنع د خپل شناخت د پاره وکړه
د بل کــار د پاره ئې زهٔ څهٔ پکار نهٔ وم (حافظ)

**صنعا** :- (صَ+ن+عا) (اس - مع) د یمن په ملک کښې د یو ښار نوم -

**صنعان** :- (صَ+ن+عا+ن) (اس - مع) (۱) شیخ صنعن د یو بزرګ نوم چې ډېر عبادت ګذار وهٔ خو چې په یوې جینۍ مئین شو نو د هغې خنزیران ئې څرول شروع کړل خو په اخره کښې ئې غیبي هدایت وشو او توبه استغفار شو -

چــې په تــور وېښتهٔ مغرور پخپل پرهېز شي
د صنعان غوندې ئې خوار په سپین وېښتهٔ کړه (خوشحال)

(۲) ګنده بغل -

**صنعت** :- (صَ+ن+عَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) جوړونه - سازونه - تیارونه - رغونه - (۲) کاریګري - رغاونه - انډسټرۍ - (۳) شعر یا په نثر کښې د لفظونو په هنر مندئ سره استعمال چې په شکل یا معنٰی کښې ئې باریکې خوبئ او ښائست پیدا شي -

د صنعت زېور په څو رنګه پرې پورې
د تشبیه چنــدڼ چووه باندې طرازې (خوشحال)

**ـــ مقلوب**:- (مَ+ق+لُو+ب) (عف تر - اس) د شعرونو یو صنعت دے چې دوه الفاظ داسې راوستے شي چې د دویم لفظ حرفونه د اولني لفظ نه په ادرولے ترتیب وي - ددې درې قسمه دي -(۱) مقلوب کل - (۲) مقلوب بعض رو -(۳) مقلوب مستوري -

**ـــ کار**:- (کا+ر) (ف ، تر ، اس - مذ ، ج - ان ، مو - ه) صنعت ګر -

**ـــ کاران**:- (کا+را+ن) (اس - ج) د صنعت کار جمع ده - ګڼ صنعت کاران - (انډسټریلسټان) -

**واړه ـــ کاران**:- (وا+ړَ ـــ کا+را+ن) (اس - مذ ، ج) د وړو وړو صنعتونو مالکان یا چلونکے - د وړوکو کارخانو مالکان -

**ـــ ګر**:- (ګَ+ر) (عف تر - صف ، مذ ، مو - ه) کاریګري کوونکے - پېشه - کسب ګر - څیزونه جوړوونکے - کاریګر - رغوونکے انډسټریلسټ -

**ـــ ګري**:- (ګَ+ري) (عف تر - اس - مو) صنعت کاري - کاریګري - پېشه ورتوب - د څیزونو جوړونه - رغاونه (انډسټري) -

**ـــ مرصع**:- (مُ+رَ+ص+صَ+ع) (عف تر - اس) د شعرونو یو صنعت دے چې په شعر کښې یو لفظ سره بل لفظ داسې راوستل کوم چې ورسره یو شان وزن لري او هم قافیه وي -

**د ـــ خاوند**:- (خا+و+ن+د) (اس - مذ ، ج - ان) د صنعت مالک - صنعت کار - د کارخانې مالک - (انګ :انډسټریلسټ)

**عالي ـــ**:- (عا+لي) لوے صنعت - د لویو څیزونو د جوړولو کارخانه -

**عسکري ـــ**:- (عَ+س+کَ+ري) (عف تر - اس - مذ)فوجي صنعت - د فوجیانو د ضرورت سامان جوړولو صنعت یا کارخانه -

**عسکریه ـــ**:- (عَ+س+کَ+ري+يَ) (و----- عسکري صفت)

**صنعتي** :- (صَ+ن+عَ+تي) (عف تر - صف)(۱) د صنعت سره تعلق لرونکے - (۲) صنعت ته منسوب دے -

**ـــ شیان**:- (شې+یا+ن) (عپ تر - اس - ج)د صنعت څیزونه - په لاس یا چې وړه کارخانه کښې جوړ شوي څیزونه -

**ـــ کول**:- د خلقو پېشه یا کار صنعت ته را اړول کارخانې جوړول -

**ـــ ملک**:- (م+ل+ک) (عف تر - اس - ج - ونه) هغه ملک چې د خلقو پېشه ئې بلعموم صنعت وي یا دا چې د څیزونو د جوړولو کارخانې پکښې ډېرې وي -

**ـــ مملکت**:- (مَ+م+ل+کَ+ت) (و------ صنعتي ملک)

**صنف** :- (ص+ن+ف) (ع - اس - مذ ، ج - ونه/ع:اصناف)(۱) قسم - نوع - جنس - توکم - (۲) ډله -

**ـــ نازک**:-(نا+ز+ک) (ف تر - اس - مذ) مجازاً - ښځه ذات - زنانه - (د سړو په مقابله کښې)

**د مرغانو ـــ**:- (دَ+مَ+ر+غا+نو) د جاندارو څیزونو هغه جنس چې په کښې الوتونکي مرغۍ مارغان شامل دي - د مرغۍ مارغانو قسم -

**کسبي ـــ**:- (کَ+س+بي) هغه نوع یا قسم کوم چې کسب سره تعلق لري -

**صنفي** :-(ص+ن+في) (عف تر - صف) صنف يا جنس سره تعلق لرونکے - نوعي - جنسي -

**صنم** :- (ص+ن+م) (ع - اس - مذ) (۱) بُت - خَتِکے - (۲) مجازاً محبو - معشوقه-

ماه رويان په جهان ډېر دي بې حسابه
تر همـــه وارو بــهتر زما صنم دے (خواجه محمد)

ـــ **خانه**:- (خا+نَ) (ف تر - اس - مو ، ج - نې) بت خانه - هغه ځاے چې بتان پکښې پراته وي او خلق ئې پرستش کوي -

ـــ **کده**:- (کَ+دَ) (ف تر - اس - مو ، ج - دې) بت خانه - صنم خانه -

ـــ **گر**:- (گَ+ر) (ف تر - صف ، مذ ، مو - ه) صنم جوړوونکے - بتان جوړوونکے - بت ساز - بت گر -

**صنما** :- (ص+ن+ما) (ف - اس - مذ) اے صنمه ! اے معشوقې !

زۀ خوشحال چې ستا په مخ باندې مئين شوم
پـارساي غـــــــواړي لـه مانـــه صنما ! (خوشحال)

**صنمه** :- (ص+ن+م) (اس - مو ، ج - مې) (۱) د صنم تانيث دے - (۲) د زنانهٔ په نوم کښې هم راځي -

**صنوبر** :- (ص+نو+ب+ر) (ع - اس - مذ) (۱) د يوې دنګې لوړې ونې نوم - د چيړ ونه د ديار ونه - غونځې - غرنځې -

که ئې اصل د يوې زمکې دے څۀ شو
بيد بــــه سرو صنوبر نۀ شي هر گز (رحمان)

(۲) د لوړوالي او نېغ والي په وجه ئې شاعران خپلې معشوقې او محبوب د قد د تشبيه په طور راوړي -

ـــ **قد**:- (ق+د) -------------------

ـــ **قامت**:- (قا+م+ت) (عف تر - صف) د صنوبر د ونې په شان لوړ قد لرونکے - (معشوقه) -

**صنوف** :- (ص+نُو+ف) (ع - اس - ج) د صنف جمع ده - (و------ صنف)

**صو** :- (صَو) (اس عدد) سله - سوه - لکه :تېر صو کسان (درې سوه کسان) -

**صواب** :- (ص+وا+ب) (ع - صف) درست - صحيح - سم ټينګ - راست - صحيح سوچ کوونکے - د صحيح راے خاوند -

ـــ **لټول**:- صحيح يا درست څيز ، جواب يا لار وغيره لټول -

**صوابديد** :-(ص+و+ب+دي+د) (ف تر - اس - مذ) صحيح او درسته صلاح - صحيح مشوره تجويز - راے - مصلحت -

**صوابي** :- (ص+وا+ب+ي) (اس مع) د خيبر پښتونخوا يوه ضلع ده-

**صوات** :- (ص+وا+ت) (اس - مع) (و------ سوات)

**صواعق** :- (ص+وا+ع+ئ+ق) (ع - اس - ج) د صاعقه جمع ده - صاعقې - د اسمان بجلۍ - تندرونه - ټکې-

لـه ازاره چا بازار مـــوندلے نه دے
اه فرياد د زېر دستانو صواعق دي (حافظ)

**صوامع** :- (ص+وا+م+ع) (ع - اس - ج) د صومعه جمع ده - بت خانې - عبادت خانې - ګرجې-

**صَوب** :- (صَو+ب) (ع - اس - مذ) طرف - ځاے -

**صوباي** :- (صُو+با+ي) (صف) د صوبې سره تعلق لرونکے -

**صوبجات** :- (صُو+ب+جا+ت) (اس - ج) د صوبه جمع ده - صوبې -

**صوبه** :- (صُو+بَ) (اس - مو ، ج - بې) (۱) د سلطنت يوه لويه برخه - ډګر - (۲) د صوبې حاکم - ګورنر -

بدوقچې صاحب صوبه وۀ په خپل ځان (خوشحال)

ـــ **دار**:- (دا+ر) (ف تر - اس - ج - ان) (۱) په فوځ کښې يوه عهده - بلوک مشر - (۲) (پخوا) د صوبې حاکم - ګورنر -

ـــ **داري**:- (دا+ري) (ف تر - اس - مو) (۱) د صوبه دار عهده - د صوبې دار کار- (۲) صوبه دار سره متعلق -

ـــ **سرحد**:- (س+ر+ح+د) (اس - مع) د پاکستان د ملک يوه پخوانۍ صوبه چې د دغې ملک قطب قبلې طرف ته د ملک په سر واقع ده - ځکه ورته شمال مغربي سرحدي صوبه وائي - د دې نوم اوس خيبر پښتونخوا ده - غوځ اکثريت ابادي ئې د پښتانو ده - دارالحکومت ئې پېښور دے - چې يو ډېر زوړ ښار دے -

**صوبې** :- (صُو+بې) (۱) د "صوبه" اضافي او مجروري وغېره شکل دے - (۲) د صوبه جمع ده -

**صوبېدار** :- (صُو+بې+دا+ر) (و------ صوبه دار)

**صَوت** :- (صَو+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه/ع اصوات) (۱) اواز - غږ - ږغ

برامد ورباندې صوت د غرب شو
خوشامد ورتـــه اواز د عندليب (خوشحال)

(۲) چغار - نغمه -

يو دا هسې ښۀ بهار بيا پرې صوت د هزار (خوشحال)

**صوتونه** :- (صَو+تُو+نَ) (عپ تر - اس - ج) د "صوت" جمع ده -

ـــ **وئيل**:- (فريادونه کول -

زۀ قلندر شوم په جهان سر شوم
له درده وايـــــــم زۀ صـوتونه (خواجه محمد)

**صور** :- (ص+و+ر) (ع - اس - ج) د صورت جمع ده -

**صور** :- (صُو+ر) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) ښکر - هغه ښکر چې غږولے شي- (۲) هغه ښکر چې اسرافيل عليه السلام سره دے او هغه به ئې د قيامت په ورځ غږوي - شپېلۍ-

ـــ **اسرافيل**:- (ا+س+را+في+ل) (اس - مذ) هغه غږېدونکے ښکر کوم چې اسرافيل عليه السلام (فرښته) سره دے او هغه به ئې د قيامت په ورځ غږوي - (ځينې خلق ورته شپېلۍ هم وائي خو دا شپېلۍ بېل شے دے صور بېل شے دے) -

**صورت** :- (صُو+ر+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) (۱) تصوير - شبيه - شکل -

صفت گر چې ښۀ صورت په ديوال ساز کا
کل عالم ئې په صفت زمـــــان دراز کا (خوشحال)

(۲) حال - احوال - لکه په دې صورت کښې - (۳) بدن - جسم - وجود -

که صورت د محمـــد ص نۀ وے پيدا
پيدا کـــړې بـــه خداے نۀ وه دا دنيا (رحمان)

(۴) ذريعه - وسيله - تدبير - په هر صورت چې وي - (۵) مخ - صورت مې ئې ښکل کړ - (۲) د سړي اله تناسل - غين -

ـــ **ايستل**:- تدبير کول - طريقه ايستل - لار باسل -

ـــ **بدلول**:- (۱) شکل بدلول - څېره بدلول - هئيت نورول - په بل شکل کېدل - (۲) حالت بدلول - په بل حال کول په بل رنګ کول-

ـــ **بدې کېدل**:- ډېر زيات نفرت "بودل" - کرکه ځنې کول - نۀ خوښول -

ـــ **بند**:- (ب+ن+د) (ف تر - صف - مذ ، مو - ه) تصوير جوړوونکے - مصور - نقاش -

ـــ **پرست**:- (پ+ر+س+ت) (ف تر - صف مذ ، مو - ه) بت پرست - د صورت يا د تصوير عبادت کوونکے -

ـــ **پيدا کول**:- څۀ تدبير کول - څۀ حل پيدا کول -

ـــ **جوړول**:- (۱) لار ايستل - څۀ طريقه ايستل - تدبير کول - (۲) تصوير جوړول - شبيه جوړول -

ـــ **جوړېدل**:- تدبير جوړېدل - طريقه جوړېدل - لار جوړېدل -

**ـــــ حال**:- د واقعي يا د پېښې احوال يا موجوده شکل او حالت-

**ـــــ حال دا دے**:- (جمله) اصل حال يا واقعه داسې ده چې ---- حقيقت د معاملې داسې دے چې ---- (عموماً په خطونو کښې ليکلے شي)-

**ـــــ خانه**:- (خا+نَ) (عف تر - اس - مو ، ج - نے) د تصويرونو د کښېښودو ځائے - ارټ ګيلري-

**ـــــ ساز**:- (سا+ز) صورت ګر-

**ـــــ سازي**:-(سا+زي) صورت ګري-

**ـــــ ښکاربدل**:- شکل ښکاربدل - تدبير په ذهن کښې راتلل-

**ـــــ ښودل**:- شکل ښودل - راتلل پيښنه کول-

**ـــــ ګر**:- (ګَ+ر) (ف تر - اس مذ ، ج - ان ، مو - ه) صورت جوړوونکے - تصوير جوړوونکے - مصور - نقاش-

صورت ګر چې ښۀ صورت په دېوال ساز کا
کل عــالم ئې پــه صفت زبــــان دراز کا (خوشحال)

**ـــــ ګري**:- (ګَ+ري) (ف تر - اس - مو) تصويرونه جوړونه - مصوري - نقاشي-

**ـــــ ملاوبدل**:- شکل ملاوبدل - شکل يو شان "بودل"-

**ـــــ موندل**:- يا

**ـــــ ميندل**:- لار موندل - ذريعه موندل - تدبير په لاس ورتلل-

**ـــــ نګار**:- (نِ+ګا+ر) (ف تر - صف ، مذ ، مو - ه) صورت يا تصوير جوړوونکے - مصور - نقاش-

**ـــــ نۀ ښودل**:- شکل نۀ ښودل - نۀ راتلل - نۀ ملاوبدل-

**ـــــ نۀ لېدل**:- شکل نۀ ليدل - د چا نۀ راتلل نۀ ليدلے کېدل - بېخي نۀ ليدل - نۀ ميسره کېدل-

**ـــــ نيول**:- شکل اختيارول - رنګ اختيارول - حالت اختيارول-

**په اجمالي ـــــ**:- (پَ+اِ+ج+ما+لي) (فپ تر - تف) مختصر طور سره - په لنډو-

**په هر ـــــ**:- (تف) په هره طريقه - په هره حيله - په هر چل-

**په هېڅ ـــــ**:- (پَ+هې+(ت)س) (تف) په هېڅ طريقه - په هېڅ تدبير - په هېڅ چل

**د ـــــ نه وېزاره کېدل**:- د ډېر نفرت يا د کرکې د اظهار د پاره وئيلے شي-

**روغ ـــــ**:- (رو+غ) (فپ تر - اس - ج - ونه) روغ بدن - صحت دربدني-

**صورتاً** :- (صُو+رَ+تَ+ن) (ع - تف) د صورت نه - د ظاهري شکل څخه-

**صورت خېل** :- (صو+رَ+ت+خېل) (اس مع) دا د سلطانيو څانګه ده او سلطاني ، شبي خېل ، علي زئ ، محسود دي-

**صـــورت کـــور**:-(صـــو+رَ+ت+کو+ر) (اس مـــع) د ضـــياؤالدين څانګـــه ده او ضياؤالدين ، بډي ، زخاخېل ، افريدي دي-

**صورتي** :- (صُو+رَ+تي) (عف تر - صف)(۱) صورت يعني بدل سره متعلق - بدن يا صورت نه منسوب-

صورتي عـمـر فـــاني دے باقي داري
چې ئې پس له مـرګه نوم د نېکو ياد شي (خوشحال)

(۲) ظاهري-

صورتي همدمان ډېر دي په دنيا کښې
ولـې نۀ مـــې شته رحمان همدم د زړۀ (رحمان بابا)

**صوري** :- (صُو+ري) (صف) چې "صُور" سره تعلق لري-

**صوري** :- (صُ+وَ+ري) (عف تر - اس - مو)ظاهري - په ظاهره-

**صوف** :- (صُو+ف) (ع - اس - مذ) پشم - وړۍ-

**صوفانزئ** :- (صُو+فا+ن+زَ+ی) (اس مع) د علي زيو څانګه ده - تور ترين دي - (په بله شجره کښې د تور ترينو د علي زيو په اولاد کښې د صوفانزئ نوم نشته - البته د عمرزيو نوم شته - بيا د عمر زيو په څانګو کښې هم د څۀ نوم نشته)-

**صوفه** :- (ص+فَ) (انګ - اس - مو ، ج - فې) د ګدو او سپرنګو والـه خاص قسم کرسي-

**ـــــ سېټ**:-(س+ټ) (انګ - اس - مذ ، ج - ونه) د ګدو او سپرنګونو والـه نرم کرسو مجموعه چې درې برخې لري - دوه پکښې د يو يو کس د ناستې د پاره وي او يوه پکښې لويه د دريو کسانو د ناستې د پاره وي-

**صوفي** :- (صُو+في) (عف تر - اس - مذ ، ج - ان عر:اصفياء)(۱) پشم پوش - د وړۍ جوړې جامې اغوستونکے -(۲) مجازاً خپل زړۀ - د غېرحق نه صفا کوونکے - درويش - عبادت ګذار - فقير - چې د صوف جامه ئې د فقيرۍ نخښه وي - (۳) هغه سړے چې چيلم يا نوره څۀ نشه کوي-

**ـــــ توب**:- (تو+ب) (اس - مذ) صوفي جوړېدنه - د صوفيانو طوري طريقه

**ـــــ منش**:- (مَ+ن+ش) (عف تر - صف مذ ، مو - ه) د صوفيانو په شان طريقه يا عقيده لرونکے - د صوفي په شان بوي لرونکے-

**صوفيانه** :- (صُو+ف+يا+نَ) (ف تر - صف)(۱) د صوفي سړي - په طرز يا انداز - د صوفي په شان -(۲) ساده - چې شوخي او نمائش په کښې نۀ وي - صوفيانه ژوند)

**صوفيه** :- (صُو+في+يَ) (اس مع) په يورپ کښې ديو ښار نوم-

**صولت** :- (صَو+لَ+ت) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) د بدبه - رعب - هېبت - پرتم-

زۀ په وصالت پسې صولت د هجران وينم
هر ساعت چې وګورم د عقل و دوربين ته (حافظ)

**صوم** :- (صَو+م) (ع - اس - مذ) روژه - روجه-

**ـــــ مريم**:- (مَ+ر+يَ+م) (عف تر -اس - مذ) خبرو روژه (روجه) - هغه روژه چې په کښې خبرې کول هم منع وي-

**ـــــ و صـــلات**:- (م+و)(صَ+لَا+ت) (ع تـر - ج) روژه او نمـونځ - دواړو د اسـلام پـه پينځو کښې دوه رکنونه دي-

**ـــــ و صلات پابند**:- (پا+بَ+ن+د) هغه سړے (يا ښځه) چې دنمونځ او د روژو د حکم پوره پوره پابندي کوي - مجازاً - نېک او ديندار سړے يا ښځه

**صومعه** :- (صَو+مَ+عَ) (ع - اس - مـو ، ج - عې) د عيسـائيانو د عبادت ځـائے - ګرجا - عبادت خانه - معبد-

دا زما د يار جلوه ده چې لېدۀ شي
لکه نمـــر صـــومعه او سومنات (رحمان بابا)

شېخ د کُنج د صومعې زۀ به ګلګشت کـــړم
د بهار ګلـــونـــه مـــاته هــــــدايت کا (خوشحال)

**ـــــ نشـين**:- (نَ+شي+ن) (عـف تـر - صـف) پـه صـومعه (عبادت خانـه) کښـې کښېناسـتونکے - خپـل ژونـد د عبـادت د پـاره وقـف کـوونکے - عيسـائي راهب-

**صهبا** :- (صَ+ه+با) (ع - اس - جم) شراب - د سپينو انګورانو شراب - بډال-

څـۀ عجـب دلخـواره دي دا صـهبا
چې ساقي ئې راکوي په هر صبا

**صهبائي** :- (صَ+ه+با+ئي) (عف تر - صف) صهبا (شرابو سره تعلق لرونکے - صهبا (شرابو) ته منسوب-

**صهيب** :- (صُ+هے+ب) (اس - مع) د حضورصلعم يو لوړ صحابي چې د روم وۀ - ډېر فصيح او بليغ سړے وۀ - عموماً ورته صهيب رومي رضي الله عنه وائي-

**صياد** :- (صَ+ي+يا+د) (ع - اس - مذ ، ج - ان)(۱) ښکارکوونکے - ښکاري - ونېے

په کامل يقين به رسې تر مطلبه
ته د صبر هنر زده کړه له صياده (خواجه محمد)

(۲) معشوقه - محبوب-

**صيادي** :- (صَ+ي+يا+دي) (عف تر - اس - مو)ښکاري - ښکار کوونه - ښکاري توب -

**صيام** :- (ص+يا+م) (ع - اس - ج) د صوم جمع ده - روژې - روجې -

**صيام** :- (صَ+ي+يا+م) (ع - اس - ج) د صائم جمع ده - روژه داران - روجه داران - روجتيان - روژاتيان -

**صيانت** :- (ص+يا+نَ+ت) (ع-اس مذ) بچ کونه - حفاظت - ساتنه - بچاو-

**صبب** :- (صے+ب) (ع-اس مذ ، ج-ان) د عربی د "صاحب" بدل شکل دے - پښتو کښې عام طور سره د "صبب" شکل استعمالېږي - (البته په مرکباتو کښې په اصل شکل کښې ځرګند شي) - (و----- صاحب)

**صيت** :- (صي+ت) (اس - مذ ، ج - ونه) اواز - غږ - ږغ - شهرت - اوازه - انګازه -

**صبحه** :- (صے+حَ) (ع-ا س - مو ، ج - حې) چغه - نعره -

**صبد** :- (صے+د) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) ښکار - وړ-

**ـــ حرم**:- (حَ+ر+م) (عف تر - اس) د حرم ځناور مارغان وغېره - (د حرم په علاقه کښې ښکار کول حرام دي) -

**ـــ کول**:- ښکار کول -

**ـــ ګاه**:- (ګا+ه) (ف تر - اس - مو ، ج - هونه) د ښکار ځاے - شکار ګاه -

**صيرف** :- (صي+رَ+ف) (اس - مذ ، ج - ونه) بار - بوج - پېټے - متل دے - صير د سوئې لرې خوشان د پېښن وئے - (وز)

**صيغه** :- (صي+غَ) (ع - اس - مو ، ج - غې)(۱) محکمه - سر رشته - څانګه - (۲) قواعد (ګريم) د فعل د ګردان صورت که د فاعل په لحاظ سره وي او که د ضميرونو په لحاظ سره -

**ـــ د جمع حاضر**:- (دَ+جَ+مَ+(ع)+م+حا+ض+ر)

**يا ـــ د جمع مخاطب**:- (دَ ، ج+مَ+(ع)+مُ+خَا+ط+ب)(عف تر - اس - مو)هغه فعل چې فاعل ئې ګڼ کسان وي او د خبرې په وخت مخامخ موجود وي يا چې خبره ورسره کېږي -

**ـــ د جمع غائب**:- (جَ+م+(ع)+غا+ئے+ب) (ف تر - مؤ) هغه فعل چې فاعل ئې ګڼ کسان وي -کوم چې د خبرې په وخت موجود نهٔ دي -

**ـــ د جمع متکلم**:- (دَ ، جَ+مَ+(ع)+م+تَ+کَ+ل+م) (عف تر - اس - مو)هغه فعل چې فاعل ئې پخپله خبره کوونکے وي او ګڼ کسان وي -

**ـــ د واحد حاضر**:- (دَ ،وا+ح+د+حا+ض+ر)

**ـــ د واحد مخاطب**:- (دَ ،وا+حِ+د+مُ+خَا+ط+ب) (عف تر - مؤ) هغه فعل چې فاعل ئې يو کس وي او د خبرې په وخت موجود وي يا چې خبره ورسره کولے شي

**ـــ د واحد غائب**:- (وا+ح+د+غا+ئے+ب) (عف تر - مو)قواعد (ګريمر) چې د يو فعل فاعل يو تن وي او د خبرې په موقع موجود نهٔ وي-

**ـــ واحد متکلم**:- (دَ ،وا+ح+د+مُ+ت+کَ+ل+م) (عف تر - اس - مو)هغه فعل چې فاعل ئې پخپله د خبرې کوونکے وي او يو کس وي -

**ـــ مجهول**:- (مَ+ج+هُو+ل)

**مجهوله ـــ**:- (مَ+ج+هُو+لَ) د کوم فعل هغه صيغه چې پکښې د فعل فاعل نهٔ وي معلوم - لکه فلانے په امتحان کښې پاس شو - (په دې کښې د پاس کولو واله يعني فاعل نهٔ دے معلوم) -

**ـــ معروف**:- (مَ+(ع)+رو+ف)

**معروفه ـــ**:- (مَ(ع)رُو+فَ) (ف تر - مو) د فعل هغه حالت چې پکښې د دغې فعل فاعل معلوم وي - لکه زيد بکر ته تخفه ورکړه (په دې کښې فاعل يعني زيد معلوم دے) -

**صيف** :- (صے+ف) (ع - اس - مذ ، ج - ونه) اوړے - د اوړي موسم - د ګرمۍ موسم دوبے

**صيفيه** :- (صي+فِي+يَ) (ع - اس - مو) (۱) د اوړي د استوګنې ځاے - (۲) اوړي سره متعلق - دوبي ته منسوب -

**ـــ نشين**:- (نَ+شي+ن) (عف تر - اس - مذ ، ج ان ، مو - ه)د اوړي د استوګنې په ځاے کښې استوګن -

**صيقل** :- (صي+قَ+ل) (ع - اس - مذ ، ج - ونه)(۱) زنګ صفا کوونه - زنګ لرې کوونه - ځلوونه - صفا کوونه - (۲) هغه اله چې زنګ پرې لرې کولے شي - روڼے -

**ـــ کول**:- په سوها يا ريګمال وغېره د اوسپنې (يا د بل کوم دهات يا فلز) څهٔ څيز نه زنګ لرې کول - صفا کول - روڼول - ځلول - ځلقوول

پنـــد د محمـــد ص د ابــــو جهل پکار نـــــهٔ شو
څوک به ئې صيقل کا چې ئې خداے ائينې زنګ کړي (خوشحال)

**ـــ کېدل**:- په سوهان يا په ريګمال وغېره د اوسپنې د څهٔ څيز نه زنګ لرې کېدل - صفا کېدل - ل پر قېدل - ځلقېدل -

**ـــ ګر**:- (ګَ+ر) (عف تر - اس - مذ ، ج - ان ، مو - ه) د صيقل کار کوونکے - په سوهان يا ريګمال وغېره د وسپنې څهٔ څيز صفا کوونکے - ځلقوونکے - روڼوونکے -

**ـــ ګري**:- (ګَ+ري) د صيقل کولو کار - د صفا کولو او ځلقولو کار کسب - روڼوونه -

**صيهوني** :- (صي+هو+ني) (ع - صف) (۱) د يهوديانو متعلق - (۲) د فلسطين د خپولو د پاره د يهوديان تحريک - (چې اس د مسلمانانو د پاره يو لوے عذاب جوړ شوے دے)

**صيهونيت** :- (صي+هُو+ني+يَ+ت) (ع - اس - مذ) (۱) يهودي توب - (۲) د اسرائيليانو هغه عالمګير تحريک چې د وطن د پاره ئې روان کړے دے -

◈◈◈

# ض

**ض** :- (ض+وا+د) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) د پښتو الفباء پینځهٔ ویشتم توری دی ـ د عربۍ پینځلسم ، د فارسۍ اتلسم ، او اردو څلیریشتم توری دی ـ اصلاً دا توری خاص د عربۍ ژبې سره تعلق لري او په پښتو کښې صرف په هغو الفاظو کښې راځي کوم چې د عربۍ نه پور کړي شوي دي او اوس د پښتو برخه ګرځېدلي دي ـ ددې توري اصل عربي اواز ډېر ګران دی او بغېر د عربو نه ئې بل څوک نهٔ شي ادا کولی ـ ځکه دا غړ د خالص عرب نسل علامت ګڼلی شي ـ (ځکه پخوا به عربو ، د اصل عرب او د غېر عرب پېژندنه ددې توري په تلفظ کوله) حضور پاک صلعم به ددې توري په خپل صحيح تلفظ فخر کولو ـ په پښتو کښې د اصل عربي اواز په ځای د "ز" په شان اواز سره تلفظ کېږي ـ په عربۍ او نورو ژبو کښې دې توري ته "ضاد" وائي خو په پښتو کښې د "واو" سپک شان اواز هم ورسره شامل وي ـ (چې اصلاً د شونډو غونډونه ده ، "واو" پکښې نشته) ـ د عربۍ په ځينو لهجو کښې ددې تلفظ "د" ته نزدې تلفظ سره هم کولی شي ځکه ورته د "داد" په شان نوم هم اخستی شي ـ د زیاتي وضاحت د پاره دې توري ته "ضاد معجمه" یا ضادِ منقوطه (نقطې والاضواد) هم وائي ـ د جمل په حساب ددې توري قیمت اتهٔ سوه (۸۰۰) دی ـ

**ضابطه** :- (ضا+بِ+طَ) (ع ـ اس فاع ، ج ـ ان ، مو ـ ه)(۱) ضبط لرونکی ـ د قاعدې او قانون سخته پابندي کوونکی ـ ساتندوی ـ(۲) د قاعدې او قانون سخت پابندي د نورو (ماتحتو وغېره) نه غوښتونکی ـ (۳) زغم کوونکی ـ بردبار ـ

**ضابطه** :- (ضا+بِ+طَ) (ع ـ اس ـ مو ، ج ـ طې)(۱) په حفاظت کښې ساتنه ـ انتظام (۲) قانون ـ دستور ـ النحل ـ قاعدې ـ (۳) د مسلمانانو په نومونو او القابو کښې هم استعمالېږي ـ

**ـــ تعزيزي**:ـ (تَ+(ع)+زي+زي) (عف تر ـ اس ـ مو)هغه قانون چې په کښې د سزا ورکولو ذکر وغېره وي ـ

**ـــ ديواني**:ـ (دي+وا+ني) (عف تر ـ اس ـ مو) د قانون هغه کتاب چې په کښې د ملکي لېن دېن او د مالي معاملاتو په حقله قوانين او سزاګانې وغېره درج وي ـ

**ـــ فوجداري**:ـ (فَو+ج+دا+ري) (عف تر ـاس ـ مذ) د قانون هغه کتاب چې پکښې د جنګ جګړو او مرګ ژوبلو وغېره په حقله قوانين او سزاګانې وغېره درج وي

**ضابطګي** :-(ضا+بِ+طَ+ګي) (عف تر ـ اس ـ مو) د قانون یا قاعدې مطابقت ـ دستور العمل سره سم ـ (عموماً د نفي په شکل کښې استعمالېږي ـ يعني بې ضابطګي د ضبط قاعدې قانون خلاف)ـ

**ضابطې**:- (ضا+بِ+طې) (عف تر ـ اس)(۱) ضابطې سره متعلق ـ د قاعدې قانون سره متعلق ـ(۲) په ضابطه يعني قاعده قانون عمل کوونکی ـ

**ضابطې** :- (ضا+بِ+طې) (۱) د "ضابطه" جمع ده ـ (۲) د "ضابطه" اضافي او مجروري شکل دی ـ

**د ـــ لاندې راوستل**:ـ د قانون یا د قاعدې لاندې راوستل ـ

**د ـــ له رويه**:ـ (لَ،رُو+يَ) د قانون او قاعدې په مطابق ـ حسبِ قانون یا حسب قاعده ـ

**د ـــ مطابق**:ـ د قانون یا قاعدې مطابق ـ د دستور العمل مطابق ـ

**ضاحک** :- (ضا+حِ+ک) (ع ـ اس فا ـ ج ـ ان ، مو ـ ه)(۱) خندېدونکی ـ خندېدونی ـ (۲) خندا کوونکی ـ

**ضارب** :- (ضا+رِ+ب) (ع ـ اس /صف) ضرب لګوونکی ـ وهونکی ـ ګوزار ورکوونکی ـ

**ضال** :- (ضا+ل) (ع ـ اس/ صف ،مذ ، مو ـ ه) ګمراه ـ بې لارې ـ (له لارې) ښوېدلی ـ لارخطا ـ ورک لاری ـ

که په علم لار موندے شوے بې له فضله
چا بــه ضال نـهٔ وې ابو علي سینا ته (حافظ)

**ضالين** :- (ضا/دا+ل+لي+ن) (ع ـ اس ـ ج) د ضال جمع ده ـ ددې تلفظ د "ز" په شان اواز سره هم ادا کولی شي او د "د" په شان اواز سره هم ـ ګمراهان ـ لارخطا ـ بې لارې خلق ـ ښوېدلي ـ ورک لاري ـ

**ضامن** :- (ضا+مي/مِ+ن) (ع ـ اس فا ، ج ـ ان) ضمانت کوونکی ـ د بل د پاره د څهٔ خبرې ذمه اخستونکی اور د بچي لوټه د سادين ، اوبهٔ تازه تازه ـ که چا نقصان بيا موند ضامن ئې زهٔ علي خان ! (مقوله)

**ـــ غوښتل**:ـ ضمانتي غوښتل ـ د داسې سړي د وړاندې مطالبه کول څوک چې دا ذمه واخلي چې فلانی سړی به خپل لوظ قول وغېره پوره کوي ـ

**ـــ کول**:ـ ضامن ګرځول ـ ذمه دار ګرځول ـ د څهٔ کار د کولو یا نه کولو په حقله سړی ذمه وار ګرځول چې که زهٔ ددې قول لوظ نه خلاف وکړم (یا وتښتم) نو دغه سړی به ددې تاوان وغېره ورکوي ـ یا سزا مومي ـ

**ـــ کېدل**، د چا :ـ د چا د څهٔ معاملې (لکه د څهٔ کار د کولو یا نه کولو) په حقله ذمه وار کېدل ـ د پېسو د ادا کولو ذمه وار کېدل ـ

**ـــ ورکول**:ـ د څهٔ کار د کولو یا نهٔ کولو په حقله داسې سړی وړاندې کول څوک چې ددغې کار په حقله ذمه واري قبوله کړي چې دغه سړی ددغې وعدې لوظ قول وغېره نه خلاف عمل وکړي نو هغه به ددې (هومره) تاوان ورکوي ـ ذمه وار وړاندې کول ـ

**ضامني** :- (ضا+م+ني) (عپ تر ـ اس ـ مو) ضمانت کوونه ـ ذمه واري اخستنه ـ

د فلاحي خلل ده کډ کړ په مېنځ کښې
چــې ئې کړ په ضامني کښې اهمال (خوشحال)

**ضائع** :- (ضا+ئِ+ع) (ع ـ صف ـ مذ ، مو ـ ه) ورک ـ تل توی ـ برباد ـ تباه ـ خراب

ـ بې فائدې ـ ګار (کاکړ) ـ

ـــــ **تلل**:ـ (عبث تلل ـ بې فائدې ګرځېدل ـ برباد تلل ـ تلېدل ـ

ـــــ **کول**:ـ (۱) عبث کول ـ تلول ـ بربادول ـ تلف کول ـ بې فائدې کول ـ هر

ساعتعمر شب قـــدر دے پـــه قدر

مه ضائع کوه د عزیز عمر ساعتونه (حافظ)

(۲) بربادول ـ خرابول ـ

سر رشته د سر ښکاري ورځخه نۀ وي

بېهوده مـرغـۀ ضـائع کا نامیر ښکار (خوشحال)

ـــــ **کېدل**:ـ (۱) عبث کېدل ـ تل کېدل ـ بربادېدل ـ ورکېدل ـ تلف کېدل ـ بې فائدې کېدل ـ

راشه مـــــه کـــوه د چـــا سره جفا

لړ ژوندون دے ضائع کېږي بې وفا (رحمان)

(۲) وژلې کېدل ـ لکه په دغه جنګ کښې زمونږ دومره کسان ضائع شول

**ضايه** :ـ (ضا+ئِ+عَ) (مؤ) (۱) عبث ـ بې فائدې ـ بې کاره ـ (۲) نقصان ـ تاوان ـ

**ضبط** :ـ (ضَ+ب+ط) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونـه) (۱) برداشت ـ زغم ـ (۲) پالنـه ـ ساتنه ـ نګهداشت ـ (۳) انتظام ـ بندوبست ـ (۴) شـوکوونه اخستنه ـ قبضه یا ملکیت کښې اخیستنه ـ

ـــــ **قائم ساتل**:ـ د قانون او دستور مطابق عمل قائم او په ځاے ساتل ـ

ـــــ **قـائمول**:ـ د قـانون او دسـتور مطابق عمـل قـائمول ـ خلق مجبـورول چې د قانون او دستور وغېره مطابق عمل کوي ـ رعب داب قائمول ـ

ـــــ **کول**:ـ (۱) کتـاب یـا جائـداد وغېـره د حکومـت پـه خپلـه قبضـه کښـې اخستل ـ فرق کول ـ (۲) سرکاري کـول ـ (۳) خپـل جذبات وغېره پـه قـابو کښـې لـرل ـ صبر کـول ـ زغـم کـول ـ (۴) پـه یـادو یـادول ـ حفـظ کـول ـ ›ضوتول ـ

ـــــ **کېدل**:ـ (۱) د کتـاب، لائسـنس یـا د جائیـداد وغېـره د حکومـت پـه قبضـه کښې راتلل ـ قرق کېدل ـ سرکاري کېدل ـ (۲) صبر کېدل ـ زغم کېدل ـ جذبات په قابو کښې راوستې کېدل ـ (۳) په یـادو یادېدل ـ حفظ کېدل ـ (ضوتېدل/زاوتېدل)

ـــــ **ګرانېدل/ګران کېدل**:ـ د برداشت نه وتـل ـ د قـابو نـه بهرکېـدل ـ تحمـل ، زغم نه کېدل ـ

د ـــــ **نه ځان ایستل**:ـ (۱) د قاعدې قانون د پابندۍ نه ځان ایستـل ـ د پابنـدۍ نـه وتل ـ (۲) د برداشت او زغم نه وتل ـ

**ضبطول**:ـ (ضَ+ب+طَ+ؤ+ل) (مص) (وـــــــ ضبط ۴۳۱)

**ضبطي**:ـ (ضَ+ب+طِي) (اس ـ مو) ضبط کېدنـه ـ د حکومت په حق کښـې اخستـے کېدنه ـ

**ضبطېدل**:ـ (ضَ+ب+تې+د+ل) (مص) (وـــــــ ضبط کېدل ، ۳۱)

**ضحاک**:ـ (ضَ+حا+ک) (ع ـ اس مـع) (۱) د قـران پـاک د یـو مُفسـر نـوم چې پـه تـابعینو کښې وۀ ـ (۲) د ځینـو نورو شهرونو نـوم دے ـ (۳) لفظي معنٰی ئې ډېر خندېدونکې ده ـ خنده وره خنده ګوړے ـ خنده روئې ـ

**ضحٰی**:ـ (ض+حا) (ع ـ اس ـ ظر) (۱) د نمر د ختو نه پس هغه وخت چې رڼا ښـه خوره شي ځابنت ـ د سحر د رڼا خورېدو نه واخلې تر غرمې پورې وخت ـ کچه غرمه ـ د غرمې د مخې وخت ـ برېځر ـ بلیځر ـ (۲) عید سره یو ځاے راځي ـ عید الضحٰی ـ لوے اختر ـ

**ضحیم**:ـ (ضَ+حي+م) (ع ـ اس ـ صف ـ مذ ، مو ـ ه) هغه کس چې خولۀ یـا مـخ یـا ځټ کښې ئې کوږوالے وي ـ کوږ مخے ـ کوږ ځټے ـ کوږ خولے ـ

**ضـخامت** :ـ (ضَ+خـا+مَ+ت) (ع ـ اس ـ مـذ ، ج ـ ونـه) غـټ والـے ـ حجـم ـ جسـامت ـ (عمومـاً کتـاب وغېـره سـره راځـي لکـه ددې کتـاب ضخامت ۵۰۰ مخونه دے) ـ

**ضخیم**:ـ (ضَ+خي+م) (ع ـ صف ـ مذ ، مو ـ ه) غټ ـ لوے حجم لرونکے ـ لوے جسم یـا وجود لـرونکے ـ پریړ ـ پنډ ـ (عموماً کتاب سره راځي لکه ډېر ضخیم کتاب دے) ـ

**ضد** :ـ (ض+د) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) (۱) برعکس ـ برخلاف ـ اپوټه ـ مخالف ـ قست ـ هوډ ـ چې په دوۀ څیزونو کښې ډېر لرې والے وي ـ (۲) پـه خپلـه خبره کلکېدنه ـ په خپله خبره ښتنه ـ هوډ ـ

ـــــ "**بودل**":ـ عکس "بودل" مقابله "بودل" مخالفت کول ـ

په دنیا د بادشاهانو سره ضد دے

امـــــــراء سره دښمن وي امـــراء (خوشحال)

ـــــ **پوره کول**:ـ خپلـه غوښتنه یـا تقاضـا سر تـه رسوول ـ د خپـل ضد یـا هوډ مطابق کار کوول ـ

ـــــ **کول**:ـ پخپله خبره کلکېدل ـ په خپله خبره ښتـل ـ خپلـه خبره یـا رائې وغېره نۀ بدلول ـ قست کول ـ

ـــــ **نیول**:ـ (وـــــــ په ضد راتلل)

په ـــــ **ټینګول**:ـ په ضد د ښنلولو ترغیب ورکول ـ په ضد کول ـ په هوډ ټینګول ـ

په ـــــ **راتلل**:ـ په خبره ښتل ـ د خپلې خبرې په ټینګولو اماده کېدل ـ هوډ نیـول ـ قست کول ـ خبره نۀ منل ـ مقابله کول ـ په غلطه او اړولې خبره ټینګېدل ـ پـه پړه ښتل ـ

په ـــــ **ښتل**:ـ په خپـل ضد ټینګېدل ـ په هوډ ټینګېدل ـ خپلې خبرې یا تقاضا نۀ پرېښودل

دچا سره ـــــ **نیول**:ـ چا سره قست اختیـارول ـ چا سـره پـه ترخ چلېدل ـ مخالفت کول کینه دښمني کول ـ

**د هواې حملو د** ـــــ:ـ د هـواې جهـازونو د حملـې مخـالف یـا عکـس یـا د هـوائي حملې د مقابلې ـ

**ضدي** :ـ (ضِ+د+دي) (عف تر ـ صف) ضد کوونکے ـ په خپله خبره ښتونکے ـ هوډي ـ

**ضدیت** :ـ (ضِ+د+دي+يَ+ت) (عف تر ـ اس ـ مـذ ، ج ـ ونـه) مخالفت ـ عکس ـ هوډه ـ قست ـ

ضد د سرې عمـر په عذاب کا

پکار نۀ دے ضدیت په دا دنیا (رحمان بابا)

ـــــ **کول**:ـ ضد کول ـ قست کول ـ برعکس چلېدل ـ مقابله یا دښمني کول ـ

**ضدین** :ـ (ضِ+د+دَ+ے+ن) (ع تشبیه) دوه ضدونه ـ دوه مخالف څیزونه (یـا کارونـه وغېره) عموماً په "اجماع ضدین" کښې راځي ـ یعنې خلاف توقع او قاعده د دووۀ مخالفو او د یو بل نه برعکس څیزونه وغېره ؤ ـ یو ځاے کېدنه لکه اور اوبۀ ـ

**ضـراب** :ـ (ضَ+ر+را+ب) (ع ـ اس فـا ، مـذ ، ج ـ ان ، مـو ـ ه) ضـرب لګـوونکے ـ ټاپه لګونکے ـ هغه کس چې په پیسو ټکو (سکه) باندې خاص سرکاري ټاپـه (نشـان) لګـوي ـ زر ټـاپونے د پیسـو ټکـو ـ روپـو پونـډونو وغېـره ؤ جوړوونکے ـ

ـــــ **خانه**:ـ (خا+نَ) (عف تر ـ اس ـ مو ، ج ـ نې) هغه ځاے چېرته چې سکې پیسې ټکې روپۍ اشرفۍ وغېره ټاپه کېږي د سکو د جوړېدو ځـاے ـ ټسکال ـ زر ټاپځاے ـ

**ضرابي** :ـ (ضَ+ر+را+بي) (عف تر ـ اس ـ مو) د ضراب کـار ـ پـه پیسـو ټکـو یـا پـه روپو اشرفو ټاپه لګوونه ـ

**ضرار** :ـ (ضِ+را+ر) (ع ـ اس ـ مذ) چاته ضرر رسوول ـ یو بـل تـه تکلیف یـا نقصـان رسول

د ـــــ **جومات**:ـ په مدینه منوّره کښې هغه جومات کوم چې منافقو جوړ کړے وۀ

-په دې چل ئې ځان او ځينې مسلمانان د عامو مسلمانانو نه بېلوول غوښتل- حضور پاک صلعم د دغې جومات د ورانولو حکم وکړو-

**ضـرب** :- (ضَ+رْ/رَ+ب) (ع-اس-مذ ، ج-ونه) (۱) ګوزار -وهنه-(۲) بيـان- بيـانول-ظاهرول-"ضرب المثـل" ددې نه وتـے دے-(۳) د شعر اخري رکن-(۴) ټاپه-مهر-لکه د سيکې ضرب- (۵) د صـــــوفيانو پـــــه اصطلاح کښې يوې ديکې سره د الله نوم يا کلمه وئيل چې په زړهٔ باندې يو ګوزار شان لګي-(۲) صدمه-نقصان-

**ـــ المثل**:- (بُ+ل+مَ+ثَ+ل) (اس-مذ ، ج-ضرب الامثال) هغه مشهوره خبره کومه چې د مثال په طور راوړلے شي-متل-

لـــه هغـــه بـــــه د حيـــا اميــد نــادان کا

چې په ملک په بې شرمۍ ضرب المثل دي (سعيد)

**ـــ المثل دے**:- مشهور دے-هر چاته معلوم دے-متل دے-

**ـــ خانه**:- (خا+نَ) (عف تر-اس مو ، ج-نے) هغه ځاے چېرته چې سيکې (روپۍ، پيسې وغيره) ټاپه کېږي-ټکسال-

**ـــ لګول**:- (۱) ګوزار ورکول-شړک ورکول-(۲) ټاپه لګول-په سکه وغيره د ټاپې نښان لګول-

**ضـرب** :- (ضَ+ر/ر+ب) (اس-مذ ، ج-ونه/ات) د حساب د علم يوه قاعـده ده اصلاً يو عدد ، د بل عدد ډېر ځله د جمع کولو لنډه طريقه ده-

**ـــ ورکول**:- د ضرب د قاعدې تر لاندې يو عدد په بل عدد کښې وهل-

**کسور ـــ**:- (کَ+سُو+ر) (اس-مذ) د کسري عددونو لـه په خولـهٔ کښې ضرب ورکوونه-د کسرونو ضرب-

**مرکب ـــ**:- (مُ+رَ+ک+کَ+ب) (عف تر-اس-مذ) ګډ ضرب-د ضرب يو قسم چې پکښې د نغد يا د بل کوم جنس حصو لـه په کوم عـدد کښې ضرب ورکولے شي-لکه روپو ، پنځوس پېسيز ، لس پېسيز او پېسو لـه په کوم عدد کښې ضرب ورکول او قيمت را ايستل-

**حاصل ـــ**:- (حا+ص+ل) (اس-مذ) (۱) د ضرب د قاعدې تر لاندې چې يو عدد پـه بـل عـدد کښې ووهلے شي (ضرب ورکړے شي) نو چې کوم عـدد نتيجې په طور راووځي-هغه خاص ضرب بللے شي-(۲) کنايتـهٔ زوے-اولاد-

**ساده ـــ**:- (سا+دَ) (و-ـــــــ ضرب مفرد)

**مفرد ـــ**:- (مُ+ف+ر+د) (عف تر-اس-مذ) ساده ضرب-يو عـدد ، پـه بـل عـدد کښې وهنه (ضرب ورکونه)-

**د ـــ جدول**:- (جَ+د+وَ+ل) هغه نقشه چې په کښې د يو نه واخلې تر لسو (يا شلو) پـورې اعـداد د ضـرب حاصـل ليکلے شـوے وي-(عموماً د نـو امـوزو طالب علمانو د استفادې د پاره تياره کړې شوې وي)-

**ضرب**:- (ضَ+ر/ر+ب) (اس-عـدد) (۱) د توپـو د شـمېر د پـاره د تـوپې لفظ سره استعمالېږي-لکه لس ضربه توپې-(۲) د توپـو د خلاصـولو د شـمېر د پاره هم راځي-لکه يوويشت ضربه توپې خلاصې شوې-

**ضـرب خېـل**:- (ضَ+ر+رَ+ب+خېـل) (اس مـع) دا د شـمک خېلـو ښانګـه ده او شمک خېل ، عبدللے ، ايمل خېل ، بهلول زئ ، محسود دي-

**ضربات** :- (ضَ+ر+با+ت) (اس-مذ ، ج)د ضرب جمع-ضربونه-ګوزارونـه-(و-ـــــــ ضرب)

**ضربول**:- (ضَ+ر+بَ+ۇ+ل) (مص) ضرب ورکول-يو عـدد پـه بـل عـدد کښې وهل-لکه: ۵ په ۳ ضرب کښې يا پينځو له په دريو کښې ضرب ورکړی-

**ضـرر**:- (ضَ+رَ+ر) (ع-اس-مـذ ، ج-ونـه) ګزنـد-تکليـف-نقصـان-تـاوان-صدمه-

سعيد هسې پـنـا غـوارې له ضرره

لکه غوښته شي پناه تل له شېطانه (سعيد)

**ـــ رسان**:-(رَ/ر+سا+ن) (عف تر-صف ، مذ ، مو-ه)هغه کس يا څيز کوم چې نقصان يا تکليف وغېره رسوي-يا رسولے شي-ضرري-

**ـــ رسول**:- (رَ+سَ+ۇ+ل) (مص) تکليف رسوول-دُک رسوول-نقصان رسوول-تاوان ورکول-ګزند رسوول-

**ـــ رسوونکے**:- (رَ+سَ+وُو+ن+کَے) (و-ـــــــ ضرر رسان)

**ـــ رسوونکي حشرات**:- (حَ+شَ+را+ت) (عپ تر-اس-ج) هغه حشري (چينجي مينجي) چې بني ادم ته تکليف يا نقصان رسوي-لکه لړم، زنځه وغيره يا هغه چينجي مينجي چې ونو بوټو يا فصل ته نقصان رسوي-

**ـــ رسوونکي نباتات**:- (نَ+با+تا+ت) (عپ تر-اس-ج)هغه بُوټي چې فصل وغيره ته نقصان رسوي-نقصاني بوټي-

**ـــ لېدل**:-(مص تر) نقصان لېدل-تکليف لېدل-تاوان لېدل-

**ـــ ناک**:- (نا+ک) (صف-مذ ، مو-ه) ضرري-ضرر رسوونکے-

**ضـرره** :- (ضَ+رَ+رَ) (۱) د "ضرر" اضافي او مجروري شکل-(۲) د ضرر يـوه جمع-

**بې ـــ**:- هغه کس يا څيز کوم چې چاته هيڅ تکليف يا نقصان نهٔ رسوي-

**ضرري** :- (ضَ+رَ+ري) (عپ تر-صف) ضرر رسوونکے-نقصان يـا تکليف رسوونکے-ايذا ورکوونکے-

**ضرغام** :- (ض+ر+غا+م) (ع-اس-مذ) شلوونکے زمرے-د اړونکے مزرے-

**ضـروب**:- (ضُ+رُو+ب) (ع-اس-ج) (۱) د ضـرب جمـع-ګـوزارونـه-(۲) قسـمونه-انواع-

**ضـرور**:- (ضَ+رُو+ر) (ع-صـف) (۱) لازم-واجـب-هغـه کـار چـې هـر څـومره کېـدونکے وي-(۲) خـواه مخـواه-لـر څـومره-الـه مالـه-(۳) مجبـوري-پـه ډېر ضرور

خوشحال له يار له مخه جدا کېږياروا کله

راضـــي کېږي چـــې ببلېږي لـــه قالبـــه (خوشحال)

(۴) ضرورت-حاجت-پکار-

**ـــ بالضرور**:- (ب+ض)ضَ+رُو+ر) (عف تر-صف)خواه مخواه-تاکيداً ضروري-ډېر ضروري طور سره-

**په ـــ "بودل"**:- مجبور "بودل"-

زهٔ تنها په ضرور نهٔ هم ستا له غمه

پيـدا شوې عاشقي ده له ضروره (رحمان)

**په ـــ کېدل**:- مجبوره کېدل-ځان چې په ضرور شي نهٔ په زوې او نهٔ پـه لـور شي-(متل)

**په ما څهٔ ـــ دے**:- په ما څهٔ مجبوري ده-

**له ـــ**:- له احتياجه-د مجبورۍ نه-

زهٔ تنها په ضرور نه يم ستا له غمه

پيدا شـوې عاشقـي ده له ضروره (رحمان بابا)

**ضرورت** :- (ضَ+رُو+رَ+ت) (ع-اس-مذ ، ج-ونه)حاجت-ضرور-پکار-احتياج-اړه

**ـــ پېښېدل**:- حاجت پېښېدل-احتياج دوڅاره کېدل-لړ کېدل-

**ـــ لرل**:- (فپ تر) حاجت لرل-احتياج لرل-

**ـــ مند**:- (مَ+ن+د) مختاج-ضرورت لرونکے-

**ـــ من**:- (م+ن) (عف تر-صف ، مذ ، مو-ه) (۱) حاجت مند-احتياج لرونکے-محتاج-(۲) غريب-عاجز-تنګدسته-خوار-مفلس-

**له ـــ**:- له مجبورۍ نه-د لاچارۍ نه-

**ضرورتاً** :- (ضَ+رُو+تَ+ن) (ع تف) (۱) د ضرورت لـه کبلـه ـ د حاجت پـه وجـه ـ (۲) واجباً ـ لازماً ـ ضرر ـ هرومره ـ

**ـــــ او لزوماً**:- (اَ+و+لَ+زُو+مَ+ن) (تـف) ضـرورت هـم دے او لازمـي هـم دهـ خامخـا ـ هرومره ـ

**ضروري** :- (ضَ+رُو+ري) (عف تر ـ صف) واجبي ـ لازمي ـ خامخا د کولو هرومره د کولو ـ

**ضريح** :- (ضَ+ري+ح) (ع ـ اس ـ مذ) (۱) قبر ـ خصوصاً هغـه قبر چي لحد پـه کښي نۀ وي ـ يعني مړے اړخ ته نۀ کښېښـودے کېږي ـ (۲) مزار ـ مرقد ـ (۳) د قبر په رنګ جوړه شوې تعزيزيه ـ (کوم تعزيه چې د ګنبد رنګ وي اصلاً هغه تعزيه بللے شي)ـ

**ضريع** :- (ضَ+ري+ع) (ع ـ اس ـ مذ) يو قسم وابنۀ دي چې اکثر د سيند پـه غـاړه کېږي ـ زهرناک دي ـ څاروے ئې نۀ خوري او کـه ئې وخوري نو ومري ـ ابلاب ـ

**ضعف** :- (ضُ+عُ+ف) (ع ـ اس ـ مذ) (۱) کمزوري ـ بې طاقتي ـ ناتواني ـ زمولتيا ـ (۲) بوډاوالے ـ

**ـــــ ګېل**:- کمزورتيا ګېل ـ کمزوري ګېل ـ

پـه يار مه کوه عتاب ځان ملامت کړه

ضعف مـــه ګڼه هـــم دا پهلواني ده (حافظ)

**ضعف** :- (ضِ+ع+ف) (ع ـ صف) دوه دونه ـ دوچنده ـ غبرګ ـ

**ضعفاء** :- (ضُ+عَ+فا) د ضعيف جمع ـ په معنٰی د کمزوري ناتوانه ـ

زور اور ته سوړ تراواورو نرم اب شي

ګرم اور پـــه وريبول د ضعفـا دي (حافظ)

**ضعيف** :- (ضَ+عي+ف) (ع ـ صف ،مذ ، مو ـ ه) (۱) کمزورے ـ بېطاقتـه ـ ناتوانـه (۲) بُوډا ـ زوړ سړے ـ (۳) مانده ـ ډنګر ـ

تر و ښتۀ ضعيف وجود مې

ستا د زلفـــو دے يـادګار (خوشحال)

**ـــــ الاعتقاد**:- (فُ+ل|ا+ع+ت+قا+د) (عف ـ تر ـ صف) هغـه کس چې عقيدې ئې هېڅ اعتبار نـۀ وي ـ کله پـه يـوه خبره عقيـده لـري ـ کله پـه بله ـ سست اعتقاد ے ـ

**ـــــ الايمـان**:- (فُ+ل|اِي+ما+ن) (ع ـ تـر ـ صـف) هغـه سـړے چې ايمـان ئـې کمزورے وي ـ يعني زور د يوې عقيدې نه بلې ته اوړي ـ بې يقينه ـ

**ـــــ الجثه**:- (فُ+ل|جُ+ث+ثَ) (ع تر ـ صف) هغه کس چې بدن ئې کمزورے وي ـ د کمزوري بدن څښتن ـ

**ـــــ العقل**:- (فُ+ل+عَ+ق|ق+ل) (ع تر ـ صف) هغه سړے چې عقل ئې کمزورے وي ـ کم عقل ـ بې وقوف ـ نادان ـ

**ـــــ کېـدل**:- (۱) کمـزورے کېـدل ـ ناتوانـه کېـدل ـ (۲) د زوړ عمـر پـه وجـه کمزورے کېدل ـ بوډا کېدل ـ

**ضعيفي** :- (ضَ+عي+في) (عف ـ تر ـ اس ـ مو)(۱) د ضعيفۍ حالت ـ کمزوري ـ کم طاقتي ـ (۲) بوډاتوب ـ بوډاوالے ـ زوړ عمر ـ

**ضلال** :- (ض/ضَ+لا+ل) (ع ـ اس ـ مذ) ضلالت ـ ګمراهي ـ

**ضلالت** :- (ضَ+لا+لَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونـه)(۱) ګمراهي ـ لار خطائي ـ بې لار توب ـ

ځان به تقي نمائي ملامت به نور ته وائي

دے په دې اخلاقـو پټوي خپل ضلالت (حافظ)

(۲) خطا ـ قصور ـ

**ضـلع** :- (ض+لَ+ع) (ع ـ اس ـ مـو ، ج ـ عـې) (۱) د صـوبې يـوه برخـه ـ (۲) د پوښتۍ هډوکے ـ پوښتۍ ـ (۳) کرښه ـ خط ـ لکيره ـ حدبازو ـ (لکـه مربع د څلورو ضلعو نه جوړېږي) ـ

**ـــــ دار**:- (دا+ر) (عف تر ـ اس مذ ، ج ـ ه)(۱) د ضلعې افسر ـ (۲) د نهرونو لـوے افسر ـ دېلدار ـ

**ـــــ داري**:- (دا+ري) (عف تر ـ اس ـ مو) د ضلع دار عهده يا کار ـ

**ضـم** :- (ضَ+م) (ع ـ اس) (۱) يـو څيـز چې بـل څيـز کښـې شـاملونه ـ ګډونـه ـ ملاوونه ـ نښلول ـ (۲) د پېښ حرکت ـ پېښ ـ ضمه ـ (ددې نوم وجه دا ده چې ددې په ادا کولو کښې شونډې يو بل ته نزدې راوړي او غونډولې شي) (۳) د پيش د اواز علامت ـ

**ـــــ کول**:- يو څيز په بل څيز کښې شاملول ـ ګډول ـ ملاوول ـ

**ـــــ کېدل**:- يو څيز په بل څيز کښې ورګډېدل ـ يو بل سره شاملېدل ـ

**ضـمان** :- (ضَ+ما+ن) (اس ـ مـذ) ضـامن کېـدونکے ـ ذمـه واري اخيسـتونکے ـ ضمانتي ـ د چا د څۀ عمل يا کار وغېره پـه حقله ذمـه واري اخسـتونکے چې دا سړے به د خپلې وعدې لوظ قول مطابق عمل کوي او کـه ئې ونـه کړه نو زۀ به ئې تاوان يا جرمانه ورکوم ـ

**د رزق ـــــ**:- (د+ر+ز+ق) دَ رزق ضـمانت کـوونکے ـ د روزۍ ذمـه دار ـ يعنـي خدا ے پاک چې رازق د کل جهان دے ـ

که د حکم د عالم د ورانۍ نۀ دے

رزق د هر چا ورکوه د رزق ضمانه (خوشحال)

**ضمانت**:- (ضَ+ما+نَ+ت) (ع ـ اس ـ مـذ ، ج ـ ونـه) (۱) ضـامني ـ ضـامن کېدنـه ـ ذمه واري اخيستنه ـ کفيل کېدنه ـ کفالت ـ (۲) خسمانه ليک ـ

**ـــــ داخلول**:- (۱) ليکلی شـوے کاغـذ (د ذمـه واري) ورکول ـ پـه عدالت کښې کفالت نامه داخلول ـ (۲) نغدې روپۍ په طور د ضمانت جمع کول ـ

**ـــــ ضبط کول**:- د ضمانت په طور اېښـودے شـوے رقم د سرکار پـه حق کښې قبضه کول ـ

**ـــــ ضبط کېدل**:- هغـه رقـم چې د ضـمانت پـه طـور کښېښـودے شـوي وي ـ د شرط د نۀ پوره کېدو له کبله د عدالت د طرفه ، د سرکار په حق کښې پـه قبضه کښې راوستې کېدل يا اخستے کېدل ـ

**ـــــ کول**:- ضامن کېدل ـ ضمان جوړېدل ـ د چا د کار يا عمل په حقله ذمه داري قبلوول

**ـــــ کوونکے**:- (کَ+وُو+ن+کے) (اس ـ فا ، ج ـ کي) ضمانتي ـ ضمانت ورکوونکے ـ کفيل ـ جوړېدونکے ـ ذمه داري قبلوونکے ـ

**ـــــ کېدل**:- ضمان راوړل ـ ضامن پېښ کوول ـ پـه عـدالت کښې ضـمانتي (يا ضمانتيانو) په پيش کولو خلاصے موندل ـ

**ـــــ منظورېدل**:- د عدالت د طرفه د ضمانتي (يا ضمانتيانو) د پېش کولـو اجازت ملاوېدل ـ

**ـــــ نامه**:- (نا+مَ) (عف تر ـ اس مو ، ج ـ مې) هغه کاغذ په کوم چې د ضمانت په حقله ليک شوے وي ـ د ضمانت کولو تحريري کاغذ ـ

**په ـــــ ازادول**:- (وـــــ پرېښودل) په ضمانت خلاصول ـ په ضمانت پرېښودل

**پـه ـــــ رهـا کېـدل**:- پرېښـودے کېـدل ـ پـه عـدالت کښـې د ضـمانتي يـا د ضمانتيانو په وړاندې کولو د رهای/خلاصے موندل ـ

**ضماناً**:- (ضَ+ما+نَ+تَ+ن) (ع ـ تف) د ضمانت په طور ـ د ذمه دارۍ اخيستلو په طور

**ضمـانتي**:- (ضَ+مـا+نَ+تي) (عـف تـر ـ اس مـذ ، ج ـ ان) ضـمانت کـوونکے ـ هغـه سړے چې د بل سړي د کار يا عمل وغېره په حقله ذمه واري قبلوي ـ کفالت کوونکے ـ ذمه اخستونکے ـ ضامن ـ ذمه دار ـ

**ـــــ کېدل د چا**:- د چا ضمانت کول ـ ضمان جوړېدل ـ ذمه داري اخيستل ـ

**ضمائر**:- (ضَ+ما+ئـ+ر) د ضمير جمع ده ـ (وـــــ ضمير)

**متصل ـــــ**:- (مُ+ت+ت+ص+ل) (اس ـ ج) هغه ضميرونه چې فعل سره يو ځا ے

راځي لکه ے ـ ئ ـ م ـ وغېره يام ـ د ـ مو ـ وغېره ـ

**منفصله** ـــ:ـ (مُ+ن+فَ+ص+لَ) (اس ـ ج) هغه ضميرونه چې د فعل نه جدا راځي لکه زۀ، تۀ، هغه وغېره ـ

**ضمائم** :- (ضَ+ما+ئِ+م) (ع ـ اس ـ ج) د ضميمه جمع ده ـ (وـــــ ضميمه)

**ضمن** :- (ضِ+م+نَ) (ع ـ اس ـ مذ) (۱) دننه ـ په مېنځ کښې ـ په مېنځ ـ دوران ـ اثنا ـ ترځ ـ (۲) متعلق ـ

**په دې ـــ کښې**:ـ په دې سلسله کښې ـ په دې لړ کښې ـ دې سره متعلق ـ

**ضمناً** :- (ضِ+م+نَ+ن) (ع ـ تف) (۱) په سلسله کښې ـ په ترځ کښې ـ په لړ کښې ـ د اصل (ليک يا بيان وغېره) نه علاوه (چې ورسره شامل وي) ـ (۲) اشاره ـ کنايتًہ ـ درپرده ـ

**ضمني** :- (ضِ+م+ني) (عف تر ـ اس ـ مو) د مقدمې د تفتيش هغه رپورټ کوم چې د پوليس د طرفه تيارولے او لېږلے شي ـ

**ضمه** :- (ضَ+م+مَ) (ع ـ اس ـ مو ، ج ـ ضمې) (۱) پېښ ـ د پېښ حرکت ـ (وـــ ضم ۱) ـ (۲) د پيش د حرکت ( ُ ) ـ

**ـــ ورکول**:ـ (۱) پېښ ورکول ـ د کوم حرف د پاسه د پېښ علامت ليکل (۲) د کوم توري اواز ـ پېښ سره لوستل ـ

**ضمير** :- (ضَ+مي+ر) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه/ضمائر) (۱) زړۀ ـ قلب ـ (۲) راز ـ پټه خبره ـ (۳) (قواعد) هغه اسم کوم چې د بل اسم (معرفه وي که نکره) قائم مقام وي او د اصل نوم په ځاے استعمالېږي ـ لکه زۀ، تۀ ـ هغه وغېره ـ (۴) د زړۀ هغه ښه قوت چې بني ادم د بدو چارو نه منع کوي ـ

**ـــ منير**:ـ (مُ+ني+ر) (عف تر ـ اس ـ مذ) روښانه زړۀ ـ هغه زړۀ چې د معرفت په رڼا روښي.

په ناپوهه باندې بې غمه بې غمي ده
د دابا افت مې خپل ضمير منير کړې (خوشحال)

**د ـــ اواز**:ـ (اَ+وا+ز) د زړه اواز ـ هغه اواز چې په زړه کښې دننه پټ وي ـ د حق اواز

**د ـــ ملامتيا**:ـ (مَ+لا+مَ+ت+يا) د ملامتيا هغه اواز کوم چې د يو ګناه کولو په وخت يا د ګناه نه پس د بني ادم د خپل زړۀ نه ووځي ـ د خپل زړۀ د طرفه ملامتيا

**د ـــ نه خلاف**:ـ د زړۀ د غوښتې نه خلاف يا برعکس عمل ـ د حق او ربښتياؤ نه بر خلاف عمل ـ

**ضميران** :- (ضَ+مي+را+ن) (ع ـ اس ـ مذ) کشمالو ـ د ريحان ګل ـ کشمالے ـ ببرے ـ تازبو (مشهور خوشبويه بوټے او ګل ئې)

ارغوان دې ضميران سوسن ريحان دې
يـاسمن دې نسترن نـــرګس ګلنار (خوشحال)

**ضميمه** :- (ضَ+مي+مَ) (ع ـ اس ـ مو ، ج ـ مې) (۱) هغه څيز چې بل کوم څيز سره يو ځاے يا ورزيات کړے شي ـ خصوصاً چې د اولني څيز کمے پرې پوره کړے شي ـ (۲) د کتاب د چاپ کېدو نه پس چې کومه برخه چې د کتاب د کمي د پوره کولو د پاره ورزيات کړے شي ـ تتمه تکمله ـ (۳) هغه مختصر اخبار چې د کوم لوے اخبار د عام اشاعت په ځاے د څۀ خاص پېښې يا غوض يا ضرورت د پاره کښلے شي ـ

**ـــ ايستل /اباسل /ويستل**:ـ د يو اخبار د عام اشاعت نه علاوه په کوم خاص موقع يا د خاص پېښې په وجه مختصر شان زياتي اخبار ايستل ـ

**ضو**:- (ضَو) (ع ـ اس) رڼا ـ د نمر (نور) روښناى ـ رڼا ـ

**ـــ فشان**:ـ (فَ+شا+ن) (عف تر ـ صف ـ مذ ، مو ـ ه) رڼا يا شوونکے ـ رڼا شيندونکے

**ـــ فشاني**:ـ (فَ+شا+ني) (عف تر ـ اس ـ مو) رڼا غورځونه ـ رڼا شيندنه ـ رڼا خورونه ـ

**ضوابط** :- (ضَ+وا+بِ+ط) (ع ـ اس ـ ج) د ضابطه جمع ده ـ ضابطې ـ قاعدې ـ

قوانين ـ

**قواعدو** ـــ:ـ (قَ+وا+عِ+ئِ+دو) (عف تر ـ اس ـ ج) قاعدې او قوانين ـ اُصول ـ

**ضياء** :- (ضِ+يا) (ع ـ اس ـ مو ، ج ـ ګانې) رڼا ـ د نمر (نور) رڼا ـ ځلق ـ بلق ـ ځلا ـ روښنائي

**ـــ بار**:ـ (با+ر) روښناى راوړونکے ـ رڼا راوړونکے ـ

**ـــ پاش**:ـ (پا+ش) روښنائي شيندونکے ـ رڼا شېندونکے ـ

**ـــ فشان**:ـ (فَ+شا+ن) (عف ترکيبونه) رڼا ورکوونکے ـ رڼا شيندونکے ـ رڼا پاشونکے ـ

**ـــ باري**:ـ (با+ري) روښنائي راوړل کېدل ـ رڼا راوړل ـ

**ـــ پاشي**:ـ (پا+شي) روښنائي شيندنه ـ رڼا شيندنه ـ

**ـــ فشاني**:ـ (فَ+شا+ني) (عف ترکيبونه ـ اس ـ مو) رڼا ورَونه ـ رڼا غورزؤنه ـ رڼا شيندونه ـ

**ضياءالدين** :- (ضِ+يا+وُ+د+دي+ن) (اس مع) (۱) دا د بېړۍ څانګه ده او بېړۍ زخا خېل افريدي دي ـ د ضياؤالدين دوه څانګې دي ـ صورت کور او کاکی کور ـ (۲) د مسلمانانو مشهور نوم ـ

**ضياع** :- (ضِ+يا+ع) (ع ـ اس ـ مذ) (۱) ضائع کېدنه ـ عبث کېدنه ـ ورکېدنه بې فائدې تلف کېدنه ـ (۲) تباهي ـ هلاکت ـ بربادي ـ سټ ګار (کاکړ) ډېرېدنه

**ضيافت** :- (ضِ+يا+فَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) دعوت ـ مېلمسيتا ـ ډوډۍ ـ خوره مړې ـ

**ـــ کول**:ـ مېلمه کول ـ په ډوډۍ رابلل ـ مېلمستيا کول ـ

**ـــ ورکول**:ـ ډوډۍ ورکول ـ مېلمستيا ورکول ـ خوړه ورکول ـ

**ضبغام** :- (ضي+غا+م) (پ تر ـ اس ـ مذ) (وـــــ صيغم) که ګاوز چې

جنګ باتور د ے جنګ ئې هېر د ے
چې پـــه سر وخوري ځپړه د صبغام (خوشحال)

**ضيغم** :- (ضَے+غَ+م) (ع ـ اس ـ مذ) (۱) شلوونکے زمرے ـ داړونکے زمرے ـ (۲) اسد ـ ماه امرداد ـ (۲۴ جولائي ـ ۲۲ اګست ـ

پس له شپږو مياشتو په چنګاشروع شو
پـــه هره ورځـــــې تر نيم صيغم د ے (خوشحال)

**ضيف** :- (ضَے+فَ) (ع ـ اس) مېلمه ـ اولمه ـ مهمان ـ

شعيب پير ئې هنرمند مهربان مـرد وۀ
لــه مـردانو راضي ضيف مسافر شي (حافظ)

**ضيق** :- (ضَي+ق) (ع ـ اس ـ مذ) (۱) تنګي ـ تنګېدنه ـ په تنګ ځاے کښې ننښتنه ـ (۲) زمول ـ خپه ـ خواشينے ـ ساه ډوبے ـ (۳) ګرانه ـ ګرانتيا ـ دشواري ـ

**ـــ النفس**:ـ (قُ+نِ+نَ+ف+س) (ع ـ اس ـ مذ) ساه لنډے ـ دمه ـ کوته ساهي ـ سياره ـ ضيق الصدر ـ

**ضيقت** :- (ضَي+قَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) تنګي ـ تنګسيا ـ د زړۀ ـ تنګېدنه ـ

**ضيمران** :- (ضَے+مَ+را+ن) (ع ـ اس ـ مذ) يو خوشبويه بوټے او د هغه ګل ـ ضميران ـ کشمالو ـ د ريحان ګل ـ تازبو ـ ببرے ـ

**ضيوف** :- (ضُ+يُو+ف) (ع ـ اس ـ ج) د ضيف جمع ده ـ مېلمانۀ ـ

◈◈◈

# ط

**ط** :- (ط+وے) (ع ـ حرف ،مو ، ج ـ ګانې) د پښتو د الفباء شپږويشتم تورے، د عربۍ شاړسم ، د فارسۍ نولسم او د اردو دوويشتم تورے دے ـ په عربۍ کښې ورته "طا" او اردو کښې ورته طوې وائي ـ د زيات وضاحت د پاره ورته د "حُطّي طے" او مهمله يا غير منقوطه (بې نقطې) طې هم وائي ـ دا حرف اصلاً عربي دے ـ او په پښتو کښې فقط په هغو الفاظو کښې راځي کوم چې د عربۍ نه پور کړے شوي وي ـ په پښتو کښې ددې توري تلفظ د "ت" په شان کولے شي ـ (عالمان په خاصو حالاتو کښې د عربو د اصل تلفظ د ادا کولو کوښښ کوي) د جمل په حساب کښې ددې توري قيمت نهٔ (۹) دے ـ (په ډېرو الفاظو کښې دا په "ت" بدلېږي) ـ

**طاب** :- (طا+ب) (ع ـ اس)(۱) خوشبويي ـ خوشبويه ـ طيب ـ(۲) صفا ـ سُوتره ـ سپېځلے ـ

**طابع** :- (طا+ب+ع) (ع ـ اس فاع ـ مذ ، ج ـ ان ، مو ـ ه) (ع ج ـ طابعين) طبع کوونکے ـ چاپ کوونکے ـ ټاپه کوونکے ـ

**طابوت** :- (طا+بُو+ت) (و........ تابوت)

**طابه** :- (طا+بَ) ________________

**طيبه** :- (طے+بَ) (ع ـ اس ـ مع) د مدينې منورې نوم دے ـ

**طارق** :- (طا+رِ+ق) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ان ، مو ـ ه) (۱) د شپې سفر کوونکے ـ د شپې په وخت راتلونکے هغه څيز چې د شپې ځرګند ېږي ـ(۲) يو سفر دے چې د سحر په وخت کېږي ـ(۳) د مسلمانانو په نومونو کښې راځي ـ

**طارق بن زياد** :- (اس مع) د دمشق مشهور مسلمان زلمے جرنيل چې هسپانيه ئې فتح کړې وه د هغهٔ په نوم جبل الطارق يا جبرالټر اوسه پورې مشهور دے ـ په هسپانيه باندې تر اوو سوو کالو پورې د مسلمانانو قبضه پاتې شوې ده ـ

**طارم** :- (طا+رَ/رُ+م) (ع ـ اس ـ مذ) د فارسۍ لفظ "تارم" نه عربي شوے دے ـ (۱) د لرګي نه جوړ شوے کور (۲) بالاخانه ـ برنے چت ـ برنۍ کوټه ـ بورجل (۳) د اسمان ګنبد ـ (د اسمان په معنٰی دې لفظ سره ځينې نور الفاظ هم راوستے شي ـ لکه طارم او اخضر ، طارم خضرا ، طارم فيروزه وغيره ـ چې په پښتو کښې کم کوز استعمالېږي) ـ

**طاري** :- (طا+ري) (ع ـ صف) (۱) ناڅاپه ځرګند يدونکے ـ (۲) د پاسه خوربدونکے ـ غلبه موندونکے ـ عارض کېدونکے (۳) د کوم لوړ ځاے نه ښکته راکوزېدونکے ـ

**ـــــ کول** :- حاوي کېدل ـ د پاسه خورول ـ عارض کول ـ لکه ويره ئې پرې طاري کړه ـ

**ـــــ کېدل** :- (عپ تر) د پاسه خورېدل ـ حاوي کېدل ـ عارض کېدل ـ غالب کېدل لکه ويره پرې طاري شوه ـ

**بېهوشي ـــــ کېدل** :- (بې+هو+شي) بې هوشه کېدل ـ بې سده کېدل ـ

**رعب ـــــ کېدل** :- رعب پرېوتل ـ په رعب داب کښې راتلل ـ

**طاس** :- (طا+س) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه)(اصلاً د فارسۍ د "تاس" نه عربي شوے دے) (۱) لوے تال ـ مجمعه ـ پتنوس ـ د اوبو يا د شرابو د څښلو لوښے ـ کټورے ـ جام ـ (۲) اسمان ـ (په دې معنٰی کښې دې لفظ سره ځينې نور وضاحتي لفظونه هم راوستے شي لکه طاس پکو ـ شين طاس وغيره)(۳) نور ـ نمر ـ ځکه چې نمر هم د لوے تال په شان دے خودې لفظ سره هم بل وضاحتي لفظ راوړے شي لکه تاس زر د زور تال (۴) هغه ژوره ارته پلنه لاره په کومه کښې چې سيند بهېږي(۵) تاش ـ د تاش پاڼې ـ (۶) يو قسم رېښمينه کپړه ـ

**ـــــ بازي** :- (با+زي) (عف ـ تر ـ مو)(۱) د تال يا رکيبۍ سره لوبې ـ هغې کرتب ته وائي چې يوه رکيبۍ د لښتې په سر تينګه کړي او چورلوي ئې په بره ئې ولي او بيا ئې په هغه لښته تينګه کړي(۲) مجازاً دوکه ـ مکر ـ فريب ـ

**طاسک** :- (طا+س+ک) (ع ـ اس ـ مذ ، مو ـ ونه)د "طاس" تصغير دے ـ وړوکے تال ـ وړه مجمعه يا پتنوس يا وړوکے کټورے ـ کټورۍ ـ

**طاعات** :- (طا+عا+ت) (ع ـ اس ـ ج) د طاعت جمع ده ـ (و..........طاعت)

**طاعت** :- (طا+عَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) (۱) حکم منل ـ حکم ته غاړه اېښودل ـ فرمانبرداري ـ حکم مننه(۲) عبادت ـ د خداے يادونه ـ

توان د طاعت راکړه چې اخلاص ورسره مل وي
نۀ هغه طاعت چې شي په رسم په رواج (خوشحال)

**ـــــ پيشه** :- (پې+شَ) (عف تر ـ صف) هغه کس چې کار کسب ئې د حکم منل او فرمانبرداي وي ـ حکم منوونکے ـ فرمان برداره ـ

**ـــــ کول** :- بندګي کول ـ عبادت کول ـ حکم منل ـ

**ـــــ ګذار** :- (ګُـو/ګُ+ذا+ر) (اس ـ فا ـ ج ـ ان ، مو ـ ه) (۱) طاعت پيشه ـ فرمانبردار حکم منونکے ـ (۲) عبادت کوونکے ـ

**طاعن** :- (طا+ع+ن) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ان ، مو ـ ه) په نيزه وهونکے ـ سُورے کوونکے مجازاً طعنه ورکوونکے ـ ټک کوونکے ـ پېغور ورکوونکے ـ

**طاعون** :- (طا+عُو+ن) (ع ـ اس ـ مذ) (۱) مشهوره مهلکه او متعدي (د يو نه بل ته لګېدونکې) وبا ـ په دې کښې اول د زور تبه وي او بيا په ترخ غمانه کښې په تيونو يا په خوټو باندې غوټې راښکاره شي ورسره په مريض بېهوشي هم طاري کېږي ـ دا مرض اول په مږو لګي ـ بيا د مږو نه په بني ادمانو ولګي او بيا خور شي او زرګونه خلق ترې ومري (۲) مطلق وبا ـ وبائي مرض ـ

که د عشق طاعوني رنځ د حميد مل شو
زر به ښخ په هديره شي د ماشو (حميد)

**طاغوني** :- (طا+غُو+ني) (عف تر ـ صف)طاعون (وبا) سره تعلق لرونکے ـ طاعون ته منسوب ـ

ته چې عشق طاعوني رنځ بولې ناصحه
د طاعـــون د رنځـور کله ښَهي کېږي (حميد)

**طاغوت** :- (طا+غُو+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ان ، ع ج طواغيت) (۱) بـــت ـ صنم ـ (اصلاً پخوا په مکه کښې ديو بُت نوم وۀ بيا وروستو هر بُت دپاره استعمالېږي) ـ (۲) شيطان ـ سرکش ـ

**طاغوتي** :- (طا+غُو+تي) (عف تر ـ صف)طاغوت سره تعلق لرونکے ـ شيطاني

**طاغي** :- (طا+غي) (ع ـ اس ـ فاع ، ج ـ ان) د حد نه اوړېدونکے ـ باغي ـ نافرمانه سرکښ ـ مفسد ـ

د مالک مېلمه به شې مُنه کاله بد حاله
که آبي طاغـــي له باره د فرمـــــان ئي (حافظ)

**طاق** :- (طا+ق) (اس ـ صف ـ مذ ، مو ـ ه) (۱) هغه عدد چې په دو پور نه تقسيمېږي يعني چې په تقسيم کښې جوړه ترې پاتې شي ـ د جوت (جفت) ضد دے ـ "ټاک" ددې بدل شکل دے (۲) يواځې کس ـ تنها ـ

که هر څو کوښښ کوي جفت به ئې نۀ کړي
لـه ازلـــــه پيـــدا شوې دنيـا طاق (خواجه محمد)

**جوت** ـــ :- (جو+ت) (فپ تر ـ اس ـ مذ) جوړه واله ـ او بې جوړه ـ (ځان له يواځې) جوت ټاک ـ

ـــ **کول** :- يو قسم جواري ده ـ عموماً په کونجکو کولې شي ـ يو کس په موټي کښې يو شمېر کونجکې پټې ونيسي ـ بل اواز ورکړي چې جوت (يا طاق) هغه موټے پرانځي او کونجکې جوړه جوړه کړې شي ـ که د ويونکي د اواز مطابق وخېژي نو هغه وګټي ـ ګټي بائلي او دغو کونجکو همره کونجکې ګټونکي له ورکړي ـ جوت ټاک کول ـ (داسې قسم جوري په پيسو او نورو وړو څيزونو هم کېږي) ـ

**طاق** :- (طا+ق) (عف تر ـ صف) په کوم کار يا هنر کښې د نورو نه وتے سړے ـ ډېر زيات ماهر ـ پوهه ـ

ـــ "**بودل**" :- په کوم کار يا فن کښې ساري نۀ لرل ـ لاثاني "بودل" ـ ډېر زيات ماهر يا مړنے "بودل" ـ

زه خوشحال پښتون چې په پښتو په فارسي طاق م
لامـــــې پـــــه پښتو ژبـــه کښې ژبه درغلېږي (خوشحال)

**طاق** :- (طا+ق) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) (۱) طاخ ـ په دېوال کښې کنستلے شوے درې ګُټيز (يا څلور ګُټيز) ځاے چې پکښې ډېوه يا نور واړۀ څېزونه کښېښودے شي(۲) محراب ـ (۳) لوے محل ـ لويه ماڼۍ ـ (۴) اسمان ـ (په دې صورت کښې دې لفظ سره نور وضاحتي الفاظ هم راوستے شي لکه طاق خضرا (شين طاق) طاق فيروزه طاق لاجورد ، طاق طارم طاق نيلو فري ـ طاق نيم خانه وغيره دا ټول عربي ، فارسي مرکبات دي) ـ

**په ـــ کښې کښېښودل** :- (۱) په طاخ کښې کښېښودل ـ په حفاظت کښې کښېښودل ـ (۲) مجازاً هېرول ـ فراموش کول ـ ملتوي کول ـ

ـــ **نسيان** :- (نِ+س+يا+ن) (عف تر ـ اس ـ مذ) د هېرې تاخ ـ د هېرولو تاخ د هغې څيز يا کار په حقله وئيلے شي کوم چې هېر کړے شي يا د چا د فکر پامه ووځي ـ

**طاقت** :- (طا+قَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه)(۱) قوت ـ زور ـ برم ـ (۲) مال ـ زر ـ دولت ـ (۳) د موټر لارۍ وغيره د قوت اندازه ـ (دا عموماً د "اس د طاقت" مطابق معلوموله شي لکه دا ګاډے يا موټر د شلو اسونو طاقت لري (۴) هر هغه څيز چې د بني ادم د پاره زور قوت باعث ګرځي ـ لښکرے ـ وسله ګوله بارود وغيره ـ

ـــ **ازمائي** :- (ا/اَ+ز+ما+ئي) (عف تر ـ اس ـ مو) د طاقت مقابله کوونه ـ زور معلومونه ـ

ـــ **ازمويل** :- (اَ+ز+مَو+ئي+ل) د زور ښکاره کوونه ـ مقابله کوونه ـ

ـــ **ازمئيل** :- (اَ+ز+مَ+ئي+ل) (عپ تر ـ مص مذ) د طاقت مقابله کول ـ دا کتاب چې د چا طاقت زيات دے ـ زور ازمئيل ـ زور قوت توان معلومول ـ

ـــ **راوړ** ، د چا :- (۱) د مقابلې قوت يا سامان لرل ـ (۲) زور ـ قوت ـ توان

موسیٰ پـــه کوه طور تجلّي طاقت رانۀ وړ
تـاولـېدۀ د سر په ستر ګو خپل لولي بهتر (خوشحال)

ـــ **ښودل** :- طاقت ښکاره کول ـ زور ښودل ـ

ـــ **ښئيل** :- د خپل زور قوت مظاهره کول ـ خپل زور قوت څرګنده ول ـ (د اطاعت بدني هم کېدے شي ـ مالي هم او د سړو او وسلې وغيره هم)

ـــ **فرسا** :- (فَ+ر+سا) (عف تر ـ صف) طاقت ختمونکے ـ بې قوته کوونکے ـ

ـــ **لرل** :- (۱) زور لرل ـ د مقابلې قوت لرل ـ (۲) وس لرل ـ (د ضرورت مطابق) مال دولت لرل ـ لکه د موټر د اخستو طاقت مې نشته ـ

ـــ **نما** :- (نُ+ما) هغه اله کومه چې د څۀ مشين وغيره د کار طاقت څرګندوي ـ قوت نما ـ

ـــ **نه پاتې کېدل** :- زور ختمېدل ـ يا کمېدل ـ قوت کمېدل ـ

**جهازي** ـــ :- (جِ+ها+زي)

**دريائي** ـــ :- (دَ+ر+يا+ئي) (عف تر ـ اس ـ مذ) په سمندر د جنګي جهازونو د بېړۍ طاقت ـ (چې څومره جنګي جهازونه وغيره لري) ـ

**د اسونو** ـــ :- (دَ+اَسُو+نو) (عپ تر ـ مذ) د مشينونو ګاډو موټرو وغيره د قوت د اندازې د پاره د "يو اس د قوت" اکائي مقرره کړې شوې ده او وئيلے شي چې دا مشين يا موټر د دومره اسونو د طاقت برابر دے ـ (انګ :هارس پاور ـ H.P)

**د ـــ بهر** :- (۱) د زور قوت يا توان نه بهر مثلاً کوم بوج يا پېټے ـ(۲) د قوت خريد په لحاظ سره يعني دومره دولت يا پيسې ټکې نۀ لرل ـ (چې څۀ څيز پرې واخستے شي) ـ

**سمندري** ـــ :- (سَ+م+نَ+دَ+ري) (عف تر ـ اس ـ مذ) (وـــ جهازي طاقت)

**شمسي** ـــ :- (شَ+م+سي)(عف تر ـ اس ـ مذ) هغه طاقت کوم چې د نمر د حرارت نه حاصلولے شي ـ

**هوائي** ـــ :- (هَ+وا+ئي) (عف تر ـ اس ـ مذ) د جنګي هوائي جهازونو طاقت (يعني چې څومره شمېر ، جنګي جهازونه لري) ـ ائير فورس ـ

**طاقچه** :- (طا+ق+چَ) (ف ـ اس ـ مو ، ج ـ چې)د طاق تصغير دے ـ وړوکے طاخ ـ تاخګې ـ تاخکوړے ـ

**طاقي** :- (طا+قي) (اس ـ مو) ټوپۍ ـ

د شرابو پـــه مستۍ بې خوده لاړې
که له سر دې پرېوځي طاقي ، تازده (خوشحال)

**طاقي** :- (طا+قي) (عف ـ صف) (۱) طاق (طاخ) سره تعلق لرونکے ـ طاق (طاخ) ته منسوب ـ(۲) طاق (د جوت ضد) سره تعلق لرونکے ـ د طاق ـ

**طال** :- (طا+ل) (ع ـ فع) (۱) اوږدشه ـ دراز شه ـ زيات شه ـ (۲) د شعر د يو اوږد بحر نوم دے ـ

نۀ ئـــې وزن نۀ تقطيع نۀ ئې عروض وو
دوه مصرعې ئې د خفيف بحر دوه طال (خوشحال)

ـــ (الله) **عمرهٔ** :- (لَ+ل+لا+هُ+عُ+م+رَ+هُو) (ع ـ جمله)د عربي دعا جمله ده ـ خداے دې ئې عمر ډېر کړي ـ عموماً په خطونو چيټو کښې د کشر د نوم سره ليکلے شي ـ

**طالب** :- (طا+ل+ب) (ع-اس-فا-ج-ان)(۱) طلب کوونکے-غوښتونکے-لټوونکے-(۲) په جومات (جماعت) کښې سبق ویونکے-دا اصلاً د "طالب العلم" مخفف دے-چنړے-(۳) عاشق-مئین-

**ـــــ علم**:- (ع+ل+م) (عف تر-اس-مذ ، ج-ان)(۱) د علم طلب کوونکے-د علم لټوونکے-د علم زده کړه کوونکے-سټوډنټ(۲) نوے زده کوونکے-نو اموز یعني چې علم ئې لاپوره شوے یا پوخ شوے نه وي-

**ـــــ علمي**:- (ع+ل+مي) (عف تر-اس-مو) د علم د طلب سره متلعلق-د علم زده کړې زمانه وغېره-شاګردي-لکه طالب علمي زمانه-

**ـــــ و مطلوب**:- (بو)مَ+ط+لُو+ب) (عف تر-اس) طلب کوونکے او د چا چې کولے شي غوښتونکے او غوښتنه-مجازاً عاشق او معشوقه-

**دامان ــــ**:- امان غوښتونکے-د ځان امان غوښتنونکے خپل شکست یا ماتې منونکے-

**د دنیا ـــ**:- (دُ+ن+یا+) (عپ-تر-اس-مذ) د دنیا طلب کوونکے-(د اخرت په مقابله کښې)د دنیا فائدې عېش و ارام او ښېګړې غوره کوونکے-دنیا پرست-

**د دیدار ـــ**:- (دي+دا+ر) (عف تر-اس-مذ) د دید طالب-د دیدن غوښتونکے-د ملاقات هڅه لرونکے-(عموماً د مینې د خطونو په اخر کښې لیکلے شي)-

**د عقبٰی ـــ**:- (عُ+ق+با) (عف تر-اس-مذ) هغه کس چې د اخرت طلب کوي-د دنیا په مقابله کښې د اخرت ثواب او ښېګړه خوښوونکے-

**طالب خېل** :- (طا+لِ+ب+خېل) (اس-مع) دا د شېرخېلو څانګه ده او شېر خېل (د هېب خېل ، نانا خېل، بهلول زئ محسود دي-

**طالبه** :- (طا+ل+بَ) (ع تر-اس-مو ، ج-ات) د طالب تانیث دے-

**طالح** :- (طا+ل+ح) (ع-اس-ج-ان ، مو-ه) بد عمله سړے-بد کرداره-(د صالح په مقابله کښې)-

د صالح تول به درنېږي
د طالح ترازو کم (حافظ)

**طالع** :- (طا+ل+ع) (ع-اس-مذ)(۱) طلوع کوونکے-راختونکے-(۲) راختونکے (ستورے) مجازاً بخت-نصیب-(خوشحال طالع مؤنث هم استعمال کړے دے)-

یا طالع د زمانې یا بخت زما دے
چې دا هسې رنګ شېرین دلبر پېدا شو (رحمان بابا)

**ـــــ ازمائي**:- (ا+ز+ما+ئي) (عف تر-اس-مو) بخت ازمئیل-خپل قسمت کتل-

**ـــــ بین**:- (بي+ن) (عف تر-صف مذ ، مو-ه) قسمت کتونکے-د قسمت حال معلومونکے-نجومي-فال کتونکے-پالي-

**ـــــ جاروتل**:- قسمت ګرځېدل-بدقسمتي راتلل-بې بخته کېدل-

کـه طالع د سړي نهٔ وي جاروتلے
هېڅ پټ نهٔ دے حقیقت په دا دنیا (رحمان بابا)

**ـــــ ستاره**:- (سي/س+تا+رَ) (عپ تر-اس) بخت رُوستورے-بخت-نصیب-

واړه ستا دا تورې سترګې خوشحال وژنې
دا قتلونه څهٔ طالع ستاره نهٔ کا (خوشحال)

**ـــــ شناس**:- (ش+نا+س) (اس-مذ ، ج-ان ، مو-ه)د طالع پېژندونکے-د قسمت حال معلوموونکے-نجومي-ترویتي-

**ـــــ کتل**:- قسمت کتل-د قسمت حال معلومول-

**ـــــ لرل**:- (مص تر) بخت لرل-خوش قسمته "بودل" قسمت لرل-

جال وغورځوم د باز په طمع ټپوس کښېښوځي
نهٔ لــرم طالع بې فائدې مې بازوانــي شوه (حافظ)

**ـــــ مند**:-(مَ+ن+د) بخت موندونکے-بخت لرونکے-

**ـــــ من**:- (م+ن) (عف تر-مذ ، ج-ان ، مو-ه)بخت لرونکے-بختور-خوش نصیبې-

طالع مند قابل یو زویه د پلار بس دے
نهٔ نابود زویه په کور کښې جوړ لښکر (خوشحال)

**اودهٔ ـــ**:- (اُو+د) (عپ تر-اس-مذ) اُودهٔ بخت-بدبختي-بد نصیبي-

**په ـــ کېدل**:- په قسمت کېدل-په برخه رسېدل-

لـه ازله برخې راغلې خورې نغښتې
د چا نېکې په طالع شوې د چار ښتې (حافظ)

**طالق** :- (طا+ل+ق) (ع-اس-صف) هغه ښځه چې طلاق ورکړے شوے وي-طلاقنه-مطلقه-(په پښتو کښې د نرېد مؤنث جوړولو د پاره ورپسې هائي تانیث هم لګولے شي)

**طالوت** :- (طا+لُو+ت) (اس-مع) د بني اسرائیلو د یو سردار نوم-جالوت له ئې ماتې ورکړې وه او نور فتوحات ئې هم کړي وو-اخر په یو جنګ کښې ووژلے شو او ددهٔ په پس حضرت داؤد علیه السلام د بني اسرائیلو د ملک باچا شو (اصلاً دا شا-وول) وهٔ-په عبراني کښې طالوت شو)

**طامح** :- (طا+مِ+ح) (ع-اس فا-ج-حان) سرکش-نافرمانه-

**طامع** :- (طا+مِ+ع) (ع-اس فا-ج-ان ، مو-ه) طمع لرونکے-حرص کوونکے-حرصي سولرن-سرابښ-هېلندوکے-

**طاؤسُ** :- (طا+وُو+س+یا+ؤس) (و ـــــ طاوس)

که اغوستے ئې زرین لباس دے څهٔ شو
ګنـه یـــومرغ زرین دے یا طاوُس (رحمان بابا)

**طاوس** :- (طا+ؤ+س) (ع-اس-مذ ، ج-ان) (۱) مشهور ښکلے مارغهٔ دے-میور چې د مستۍ په وخت ښکلي وزر په خپله ملا لکه د لوے په پکي ودروي او ګډېږي-(۲) ددې مارغهٔ وزر هم ډېر پوست او ښکلے وي-خښې خلق ئې په قران مجید کښې د نخښې په طور کښېږدي-(۳) د بربط په شان یو ساز چې شکل ئې د طاؤس په شان جوړولے شي-(۴) د نارینه ؤ په نوم کښې هم استعمالېږي-

**د ـــــ مستي**:- (مَ+س+تي) (عپ تر-اس-مو) د مشهور مارغهٔ طاؤس یا میور د مستۍ وخت-هر کله چې دا وخت ډېر لنډ وي ځکه مجازاً لنډ پاري یا عارضي څیز ته وائي-

**طاؤس خېل** :- (طا+ؤ+س+خېل) (اس مع) دا د پیرباخېلو څانګه ده او پیر باخېل، هاتي خېل ، خاندر خانخېل ،سېن خېل ،احمدزئ ، درویش خېل ، وزیر دي

**طاؤس خېل** :- (طا+ؤ+س+خېل) (اس مع) دا د سیني خېلو څانګه ده او سیني خېل د ګدائي زئ ، الیاس زئ ، بنیر وال دي-

**طاؤس خېل** :- (ددغه) (اس مع) دا د سوګي خېلو څانګه ده او سوګي خېل ، محمد خېل ، ملخ ، ملي زاد ، داوړ دي-

**طاؤس خېل** :- (ددغه) (اس مع) دا د حېدر خېلو څانګه ده او حېدر خېل ، تپي زاد داوړ دي-

**طاؤس خېل** :- (ددغه) (اس مع) دا د سین خېلو څانګه ده او سین خېل، میاخېل ، لوهاني پاونده دي-

**طاؤسه** :- (طا+ؤ+سَ) (عپ تر-اس-مو) د طاوس تانیث-ماده طاؤس-ښځه طاؤس-میوه-

**طاؤن** :- (طا+ؤ+ن) (و ـــــ طاعون)

**طاؤله خېل** :- (طا+ؤ+لَ+خېل) (اس مع) دا د سرکي خېلو څانګه ده او سرکي خېل ، سپن خېل ، احمد زئ ، درويش خېل ، وزير دي ـ

**طاهر** :- (طا+ه+ر) (ع ـ صف ، مذ ، مو ـ ه)(۱) پاک ـ صفا ـ پاکيزه ـ سُتره ـ (۲) د مسلمانانو په نومونو کښې راځي ـ د خوشحال د يو زوي نوم

تا طاهر د کم عقلۍ په جرګو مړ کړ
او رافغ شوے د طاهر له انتقامه (خوشحال)

**طاهر شاه** :- (طا+ه+ر+شا+ه) (اس مع) دا د ابراهيم خېلو څانګه ده او ابراهيم خېل ، عمرزوني ، ملي زاد ، دوړ دي ـ (په بله شجره کښې دا مزوني يا د عمزوني په اولاد کښې د ابراهيم شاه نوم شته ـ صرف د دوؤ خېلونو ذکر دے يعني زيراخېل او تانيث خېل) ـ

**طاهري** :- (طا+ه+ري) (عف تر ـ اس ـ مو) پاکوالے ـ پاکيزګي ـ سُتره توب ـ سپېځلتيا ـ

**طائر** :- (طا+ئي+ر) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ان ، مو ـ ه) طېـــران کـــوونکے ـ الوتونکے ـ مرغۍ ـ مارغۀ.

**طائران** :- (طا+ئي+را+ن) (عف تر ـ اس ـ ج) مارغان ـ الوتونکي ـ

**طــائف** :- ( طــا+ئي+ف) (ع ـ اس ـ مــذ ، ج ـ ان ، مــو ـ ه)طــواف کــوونکے ـ د (کعبې نه) چاپېره ګرځېدونکے ـ

**طائف** :- (طا+ئي+ف) (اس مع ) په عربو (حجاز) کښې د يو کلي او د علاقې نـوم دے ـ دغـه علاقـه ډېـره زرخېـزه او ابـاده ده او قسـم قسـم مېـوې پکښې پېدا کېږي ـ د حضور پاک صلعم په وخت ددې علاقې خلقو حضورصلعم ته ډېر تکليف رسولے وۀ خو په اخره کښې مسلمانانو دغــه علاقــه هــم فــتح کــړو ـ نــن پــرون د ســعودي عــرب د اُوړي دارلحکومت دے ـ

**طائفه** :- (طا+ئي+فَ) (ع ـ اس ـ مو ، ج ـ فې) (۱) د سـړو ټـولے ـ جماعـت ـ فرقه

زۀ د وصل لـــه نعمته بهر ور وم
طــائـفه د حــودانو بې بهره وه (حافظ)

(۲) سندرغاړې ښځه ـ ډمه ـ (۳) د سندرو غاړو او ګډېدونکے وغېره ټولي ـ لکه د ګډېدونکو طائفه ـ

**طايي** :- (طا+يي) (ع تر ـ صف) د عربو د "طې" قبيلې سره تعلق لرونکے ـ طې قبيلې تـه منسوب ـ پـې پښـتو کښـې عموماً حاتم سره راځي ـ يعني حاتم طايي چې په سخاوت او بخښنې کښې ضرب المثل دے ـ

**حاتم ـــــ**:- (حا+ت+م) (اس مع)(۱) د عربـو مشـهور سخي سـړے تېر شـوے دے ـ (۲) مجازاً ډېر زيات سخي ـ

**د ځان نه ـــــ جوړول**:- (۱) د ډېر زيات سخاوت نه کار اخستل ـ بې کچه ډېر سخي توب کول ـ(۲) فضول خرڅي کول ـ

**طب** :- (ط+ب) (ع ـ اس ـ مذ) د مرضونو د علاج او د دارو درملو طبيبي دور ملـَي پوهـه ـ (عمومـاً ديسـي يـا يـو نـاني دارو درملـو پـه حقلـه استعمالېږي) ـ

**اسلامي ـــــ**:- (عف تر ـ اس ـ مذ) (و ـــــ يوناني طب)

**روحاني ـــــ**:- (رو+حا+ني) هغه علم چې د روحاني بيمارو د علاج سره تعلق لري ـ تصوف ، علم الخلاق ـ

**يوناني ـــــ**:- (يُو+نا+ني) (عف تر ـ اس ـ مذ)د علاج هغه طريقه چې شورو ئې د يونـان پـه ملـک کښـې شـوې وه چېرتـه چـې لـوے لـوے طبيبـان او حکيمـان تېر شـوي وو ـ (د غـه طب وروسـتو مسـلمانانو پـه خپـل لاس کښې واخست او دې له ئې بې کچه ډېره ترقي ورکړه بيا د دوي نه هم وروستو د يورپ په خلقو د عربو دغې طب لـه نوره هم زياتـه ترقي ورکړه نو ځکه کوم طب چې د "يوناني" په نوم اوس هم روان دے دا اصلاً د مسلمانانو طب دے ځکه ورته اسلامي طب هم وائي) ـ

**طابت** :- (طَ/ط+با+بَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ) طبيبي ـ د طب کار ـ د دارو درملو او علاج کولو کار ـ حکيمي ـ حکمت ـ

**ـــــ کول**:- حکيمي کول ـ د دارو درملو او علاج کولو کار کول ـ

**طباخ** :- (طَ+با+خ) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) لوے تال ـ لويه رکيبۍ ـ

چې په تشه تواضع کښې ګټـه کېږي
هومـره سود نشته د ډک طباخ دسه (خوشحال)

**طباشير** :- (ط+با+شي+ر) (ع ـ اس ـ مذ) د يـوې مشـهورې دواى نـوم چې د بانس نـه پېدا کېږي ـ سپين يـاا نيلي شـان رنګ لـري ـ تباشير (هند: بانسلو چن :د بانس چيړ)

**طباطبا** :- (طَ+با+طَ+با) (اس مع) د سېدانو د يوې لوئې کورنۍ نوم دے ـ د امام حسېن عليه السلام د يو نوسي اسمٰعيل نوم ګرځېدلے وۀ ـ وائي چې هغه به د قاف تورے نۀ شو ادا کولے او ددې په ځاے بـه ئې "طې" وئيله ـ يوه ورځ ئې د پلار نه قباغوښتله خو د قبا په ځاے ورتـه طبا ، طبا وئيل ـ ددغې نه د هغه نوم طبا طبا شو او اوس ئې اولاد هم په دغـه نوم يعني طبا طبائي سېدان نومېږي ـ

**طباع** :- (طب+با+غ) (ع ـ صف)(۱) د ښې او علي طبعې خاوند (۲) تېـز طبيعت ـ ذهين ـ ذکي(۳) هغه څوک چې څۀ څيز په سانچه کښې اچوي طبع کوونکے ـ چاپ کوونکے ـ طابع ـ

**طباع** :- (ط+با+ع) د طبيعت جمع ـ

**طباعت** :- (طَ+با+عَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) طبع کوونکے ـ چاپ کوونکے ـ د چاپ کولو فن ـ کار يا هنر ـ

**طباعتي** :- (طَ+با+عَ+تي) (عف تر ـ اس ـ مو) طباعت سره تعلق لرونکے ـ د چاپ متعلق ـ لکه: دا کتاب ښه طباعتي ښائيست لري ـ

**طباعي** :- (طَ+با+عي) د طبيعت تيزي ـ ذهانت ـ

**طباف** :- (طَ+با+ف) (و ـــــــ طواف)

**طباق** :- (طَ+با+ق) (ع ـ اس ـ مذ) لوے تال ـ لويه رکېبۍ ـ

**طباق** :- (ط+با+ق) (ع ـ اس ـ مذ) (۱) برابرونـه ـ موافـق کوونـه (۲) پـه علـم بديع کښې يو صنعت چې شعر يا نثر کښې يو شان لفظونه راوستے شي ـ

**ـــــ الاضداد**:- (قُ+ل+اَ+ض+دا+د) (ع ـ تر ـ اس ـ مذ)د بيع د علم په اصطلاح کښـې پـه يـو شـعر يـا نثـر کښـې داسـې الفـاظ راوسـتل چـې معنٰـى ئـې متضادې يعني د يـو بـل مخالفې وي لکه ژوند او مرګ ، رڼا او تيارۀ وغېره ـ

**صنعت ـــــ**:- (صَ+ن+عَ+ت) علم بديع کښې د يو جوړونې نوم دے چې په شعر کښې دوه يو شان لفظونه راوړے يعنې داسې لفظونو راوړل چې په يو بل منطبق شي ـ

**طبائع** :- (طَ+با+ئي+ع) (ع ـ اس ـ ج) د طبيعت جمع ده ـ (و ـــــ طبيعت)

**طبخ** :- (طَ+بَ+خ) (ع ـ اس ـ مذ) پخوونه ـ په ور پخول ـ پخلے ـ

**طبراق** :- (طُ+ب+را+ق) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) (۱) د فقيرانـــو ګـــوډے ـ د فقيرانو ځولۍ ـ (۲) توبره ـ

**طبـري** :- (طَ+بَ+ري) (ع ـ اس ـ مـذ)(۱) د طبـر ښـار سـره منسـوب ـ داسـې تـاريخ مشـهور مـورخ ، او د قـران پـاک لـوے مفسـر ـ ابـن الجرير البطري ـ (۲) طبرزد سره متعلق ـ طبرزد اصلاً د تبر زد سره معرب دے او تبر زد نبات يا قندو تـه وائي چې د ګنې نه جوړولے شي او هر

کله چې ګنې د ټوټې کولو د پاره په تبر وهلې شي ځکه د نباتو نوم "تبرزد" ـ (په تبر وهلې شوې) شۀ ـ (۳) د خوږ والي په نسبت طبري مجازاً د معشوقې شونډو ته هم وائي ـ

**طبع** :- (طَ+بَ+ع) (ع ـ اس ـ مو ، ج ـ طبعې) (۱) د بنـي ادم سرشت ـ طبيعت ـ خوی خصلت ـ خټه ـ پنځون ـ خمبير ـ

ورته هېڅ د ښکار د ذوق خبر مه کړه
د هغه سړي چې طبع د ښکار ده (خوشحال)

(۲) چهاپ ـ ټاپ کونه ـ نقش کونه ـ (۳) د ذهن نه بهرني موجودات ـ

ــــ **خټه "بودل"**:ـ طبيعت خراب "بودل" ناراضه يا خفه "بودل" مُوډ خراب "بودل"

ــــ **خټه کول**:ـ طبيعت خرابول ـ طبيعت ناسازه کول ـ خفه کول ـ مُوډ خرابول

ــــ **خټه کېدل**:ـ طبيعت خرابېدل ـ طبيعت ناسازه کېدل ـ خفه کېدل ـ موډ خرابېدل ـ

ــــ **خرابېدل**:ـ (۱) طبيعت خرابېدل ـ په صحت کښې فرق راپېدا کېدل (۲) خفه کېدل ـ زړۀ ته خفګان رسېدل ـ

ــــ **دې ځنګه ده**:ـ (جمله) طبيعت دې ځنګه دے ـ په صحت جوړ ئې يا د زړۀ حالت دې ځانګه ده ـ (يعني خفه ئې که خوشحال)ـ

ــــ **راتلل**:ـ(۱) طبيعت مائل کېدل ـ خوښېدل ـ (۲) مئېنېدل ـ

ــــ **زاد**:ـ(زا+د) (عف تر ـ صف ، مذ ، مو ـ ه) د طبيعت او خپل ذهن نه پېدا شوے يا پېدا کړے ـ د خپل ذهن پېداوار ـ هغه شعر يا څيز کوم چې چا د خپل فکر او ذهن په زور جوړ کړے وي ـ (د بل نه نۀ وي پور شوے) ـ

ــــ **ښۀ کېدل**:ـ طبيعت ښۀ کېدل ـ خوشحالېدل ـ زړۀ ته خوشحالي رسېدل ـ په حېرت کښې کېدل ـ

ــــ **صفا کول**:ـ طبيعت صفا کول ـ په طبيعت کښې خوشګواري پېدا کول ـ

ــــ **صفا کېدل**:ـ طبيعت صفا کېدل ـ د زړۀ بوج لرې کېدل ـ

ــــ **لګېدل**:ـ زړۀ لګېدل ـ چا سره د طبيعت موافقت راتلل ـ خوښېدل ـ لکه فلاني سره مې طبع لګېدلې ده ـ

**په ــــ راست راتلل**:ـ څۀ څيز (خبره ــــ کار) په زړۀ ښۀ لګېدل ـ په طبيعت موافق راتلل ـ

**په ــــ ښۀ لګېدل**:ـ (و ــــــــ په طبع راست راتلل)

**په ــــ کښې**:ـ په ښۀ حالت کښې ـ خوشحاله ـ په مسرت کښې ـ په ښۀ موډ کښې ـ په حېرت کښې ـ

**په ــــ کښې کېدل**:ـ خوشحالېدل ـ په مسرت کښې کېدل ـ موډ ښۀ کېدل ـ په حېرت کښې کېدل ـ

**طبعاً** :- (طَ+ب+عَ+ن) (ع ـ تف) د طبيعت په وجه ـ فطري طور سره ـ د سرشت ، خټې مطابق ـ

**طبعي** :- (طَ+ب+عي) (ع ـ تف)(۱) طبعي ته منسوب ـ طبيعت سره متعلق ـ (۲) ځاے ـ اصلي ـ قدرتي ـ (۳) د حکمت يو قسم چې پکښې د مادې په تغېراتو ، تبديلو ، اوړېدو راوړېدو او د خواصو وغېره په حقله بحث کولے شي ـ

ــــ **جغرافيه**:ـ (جُ/جو+غ+را+في+يه) (اس ـ مو ، ج ـ في) هغه جغرافيه په کومه کښې چې د زمکې (د کرې) قدرتي تبديلو او تغيراتو وغېره په حقله بحث کولے شي ـ

**طبعې** :- (طَ+بې/ب+عې)(۱) "طبع" اضافي يا مجروري حالت دے ـ (۲) د "طبع" جمع ده ـ

ــــ **ته کتل**:ـ (۱) د چا طبيعت ته کتل ـ د چا زړۀ حال ته کتل ـ موډ ته کتل ـ(۲) مزاج ته کتل ـ خواهش ته کتل ـ

**خپلې ــــ ته ګوره**:ـ (جمله) خپلې خوښې ته ګوره ـ خپل زړۀ ته ګوره ـ خپله رضا کوه ـ

**د ــــ خاوند**:ـ (خا+ؤ+ن+د) د طبيعت مالک ـ د خپلې خوښې اختياروونکے چې څنګه ئې زړۀ غواړي هغه شان کار کوونکے ـ

**طبق** :- (طَ+بَ+ق) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه)(۱) طباخ ـ لوئې ـ رکيبي ـ

چې سايه ئې د وجود په مزکه نۀ وه
چې بره ورته ګويا شه له طبقه (خوشحال)

(۲) برابرې ـ موافقت ـ يو رنګ کېدنه ـ (۳) د زنانه خپل پټ اندامونو يو بل سره مږل ـ مساحقت ـ(۴) د اسونو يو مرض چې د نامۀ نه ئې چاپېره پړسوب پېدا شي ـ د کورني ځناورو د خولو او پښو يو مرض چې په اولسي لهجه کښې تبَک وئيلے شي ـ

ــــ **بازه**:ـ (با+زَ) (عف تر ـ اس ـ مو ، ج ـ زے) هغه ښځه چې خپل پټ اندام د بلې ښځې پټ اندام سره مږي او جنسي خواهش پوره کوي ـ مساحقت کوونکې ښځه ـ

ــــ **بازي**:ـ (با+زي) (عف تر ـ اس ـ مو) مساحقت ـ د ښځو په خپلو کښې د خپل پټ اندامونو جنګونه ـ

ــــ **راګېدل**:ـ د طبق مرض خوړېدل ـ

ــــ **وهل**:ـ د طبق مرض په ځاروۀ لګېدل ـ

**طبقات** :- (طَ+بَ+قا+ت) (ع ـ اس ـ ج)(۱) د طبقه جمع ده ـ طبقې ـ ټولې ـ ګردهونه ـ (۲) حصې ـ ټکرې ـ لاندې باندې برخې ياتهونه ـ

ــــ **الارض**:ـ (تُ+ل/اَ+ر+ض) (ع تر ـ اس ـ ج) د زمکې طبقې ـ د زمکې پرکونه ـ (انګ ـ جيالوجي)

**د ــــ الارض علم**:ـ (ع+ل+م) د زمکې د لاندې باندې پرکولو علم ـ د زمکې پېژندنه ـ زمين شناسي ـ

**طبقاتي** :- (طَ+ب+قا+تي) (عف تر ـ صف) طبقې يا ټولې درجې سره تعلق لرونکے ـ

ــــ **اختلافات**:ـ (ا+خ+ت+لا+فا+ت) د مختلفو طبقو (ټولو) په خپله کښې اختلافات د يوې طبَقې اختلافات د بلې طبقې سره ـ

ــــ **جنګ**:ـ (جَ+ن+ګ) (عف تر ـ مذ ، ج ـ ونه) د مختلفو طبقو ، يا د ډلو ، يا د مختلفو درجو خلقو په خپله کښې جنګ او مقابله ـ

**طبقه** :- (طَ+ب+قَ) (اس ـ مو ، ج ـ قې) (۱) درجه ـ منزل ـ رتبه ـ (۲) د کومې خاص عقېدې يا مقصد وغېره سره تړلې ډله ـ

ــــ **بندي**:ـ (بَ+ن+دي) (عف تر ـ اس ـ مو)(۱) په طبقو کښې تقسيمول ـ مختلفو (لاندې باندې) درجو کښې وېشتل ـ (۲) په مختلفو قسمونو يا مختلفو درجو کښې وېشل لکه د حېوانانو طبقه بندي ـ

**کوزه ــــ**:ـ (کُو/کَ+زَ) ــــــــــــــــــــــــــــ

**لاندينۍ ــــ**:ـ (لا+ن+دي+نَ+ۍ) ــــــــــــــــــــــــــــ

**ښکته ــــ**:ـ(خ/ش+ک+تَ) (۱) د لاندې درجې يا مرتبې خلق ـ (۲) غريب ـ نادار خلق ـ (۳) کوزنۍ يا لاندينۍ درجه يا منزل ـ

**لوړ ــــ**:ـ (لُ+ړ) ــــــــــــــــــــــــــــ

**اوچته ــــ**:ـ (اُو+چ+تَ) (اس ـ مو ، ج ـ قې)(۱) د اوچتې درجې يا مرتبې د خلقو ټولې (۲) شته من او خوش حاله خلق ـ (۳) پاسنۍ يا برنۍ درجه يا منزل ـ

**طبل** :- (طَ+ب+ل) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه)(۱) نغاره ـ نقاره ـ نوبت ـ د لرګو وغېره سره د غړولو هغه اله چې د يولوے کنال د پاسه څرمن ښښلولے شوے وي او ژېبو نه ئې په مزو راښکلے شوے وي ـ دا عموماً جوړې

وي او په اوښانو وغیره باندې یو خوا بل خوا تړلے شي۔ دا عموماً د خوشحالۍ یا د جنګ په موقع غږولے شي (۲) لوے ډول۔

تۀ د طفل غوندې بې غږ ئې سعید هېڅ نور
د مـــــردانو قیمت قدر په کردو وي (سعید)

**طبله** :- (طَ+ب+لَ) (عف تر ۔ اس ۔ مو ۔ ج ۔ ې) وړوکے طبل ۔ دوکړه۔ دا یو ځان له جدا ساز دے ۔ دا په اصل کښې (امیر خسرو) اوړد ډولکے په مېنځ نیم کړے او دوه برخې کړې وۀ او په ځاے د دې چې لکه د ډولکي، د اړخونو نه غږولے شي ۔ د پاس نه غږولے شي ۔ دا دواړو ټوکړي د لاندې نه بندې وي ۔ ددې ایجاد امیر خسرو رحمت الله علیه کړے دے او اوس د موسیقۍ په سازونو د اولې درجې اهمیت لري ۔

**ـــــ نواز**:- (نَ+وا+ز) (فپ تر ۔ اس /صف ، ج ۔ ان ، مو ۔ ه) طبله غږوونکے ۔ طبله مار ۔ دوکړه مار ۔

**طبي** :- (ط+ب+بي) (عف تر ۔ صف) طب سره متعلق ۔ دارو درملو سره متعلق دارو درملو ته منسوب ۔

**ـــــ اصطلاحات**:- (ا+ص+ط+لا+حا+ت) (عف تر ۔ اس ۔ ج) هغه اصطلاحات کوم چې د طب (دارو درملو) علم سره تعلق لري ۔

**ـــــ فاکولټه**:- (فا+کو+ل+ټَ) (عف ۔ تر ۔ اس ۔ مو) طبي فېکلټي ۔ د طب شعبه ۔

**ـــــ ګیاه ګاني**:- (ګَ+یا+(ه)+ګا+نې) (فپ تر ۔ اس ۔ ج) هغه ګیاه ګانې وابنۀ بوټي وغیره کوم چې په دارو درملو کښې پکارولے شي ۔

**ـــــ مرسته**:- (م+ر+س+تَ) (عپ تر ۔ اس ۔ مو ، ج ۔ تې) طبي امداد ۔

**ـــــ مکتب**:- (مَ+ک+تَ+ب) (عف تر ۔ اس ۔ مذ ، ج ۔ ونه) هغه مدرسه چې پکښې د طب (دارو درملو) زده کړه کېږي ۔ مېډیکل سکول یا کالج ۔

**طبیب** :- (طَ+بي+ب) (ع ۔ اس ۔ مذ ، ج ۔ ان ، مو ۔ ه) د طب د علم پوهان ۔ حکیم علاج کوونکے ۔

رنځ د رنځور زیات کا هېڅ صحت ئې پروا نشي
نشته دي حـاذق طبیبان لاړ لـــــه ولایتـــــه (خ محمد)

**طبیبي** :- (طَ+بي+بي) (عپ ۔ تر ۔ اس ۔ مو) د طبابت کار ۔ د دارو درملو کولو پېشه ۔ حکیمي ۔

**ـــــ کول**:- د حکمت کار کول ۔ د خلقو علاج معالجه کول ۔ د دارو درملو کار کول

**طبیعت** :- (طَ+بي+عَ+ت) (ع ۔ مذ ، ج ۔ ونه) (۱) مزاج ۔ طبع ۔ فطرت ۔ (۲) د شعر د وئیلو طبع ۔

هر مضمون ته چې د زړۀ توجه وکړم
طبیعت ئې راکـــوي په استعجـــال (خوشحال)

**ـــــ پرېشانه کېدل**:- په زړۀ خفګان راتلل ۔

**ـــــ خټه "بودل"**:- طبیعت خراب "بودل" ۔ طبع ناسازه "بودل" ۔ ناروغه "بودل" ۔

**ـــــ خټه کول**:- طبیعت خرابول ۔ طبع ناسازه کول ۔ طبیعت مکدر کول ۔ خفه کول ۔

**ـــــ خټه کېدل**:- طبع خرابېدل ۔ طبیعت ناسازه کېدل ۔ خفه کېدل ۔

**ـــــ خرابول**:- (۱) زړۀ خرابول ۔ څۀ خوراک په طبع بد لګېدل ۔ د معدې شکایت پیدا کول ۔ ناروغه کول ۔ (۲) څۀ خبره په زړۀ ناسازه یا ناراضه لګېدل ۔ (۳) داسې خبره یا کار کول چې د بل په زړۀ ناسازه ولګي ۔

**ـــــ خرابېدل**:- (۱) زړۀ خرابېدل ۔ د معدې شکایت پیدا کېدل ۔ ناروغه کېدل ۔ (۲) څۀ خبره په زړۀ ناسازه لګېدل ۔ خفه کېدل ۔

**ـــــ خوشحالول**:- زړۀ خوشحالول ۔ په زړۀ کښې (چاله) خوشحالي او مسرت پیدا کول ۔

**ـــــ درستول**:- سزا ورکول ۔ وهل ټکول ۔ سبق ورکول ۔

**ـــــ سپکېدل**:- (۱) د زړۀ نه بوج لرې کېدل ۔ طبع خوشګواره کېدل ۔ (۲) بدهضمي وغیره لرې کېدل ۔

**ـــــ صفا کول**:- (۱) د زړۀ بوج لرې کول ۔ د طبعي دروندوالے لرې کول ۔ (۲) سزا ورکول ۔ (طنزاً)

**ـــــ صفا کېدل**:- (۱) د زړۀ بوج لرې کېدل ۔ د طبعي دروندوالے نه پاتې کېدل ۔ په طبعیت کښې خوشګواري راتلل ۔ (۲) (طنزاً) تکلیف یا سزا موندل ۔

**ـــــ کولاوېدل/پرانستے کېدل**:- طبع پرانستې کېدل ۔ زړۀ خوشحالېدل ۔ د زړۀ نه بوج لرې کېدل ۔

**ـــــ لګېدل**:- طبع لګېدل ۔

**ـــــ مخبط کېدل**:- په طبیعت کښې څۀ خبط پیدا کېدل ۔ لېونے کېدل ۔

طبیعت چې مخبط شي سـور ئې نشته
نۀ پـــــه پند نصیحت نـــــۀ په ترکیب (خوشحال)

**ـــــ موزون "بودل"**:- د څۀ کار د پاره طبع موافقه بودل ۔ خصوصاً د شعرونو جوړولو د پاره طبیعت موافق بودل ۔

**په خپل ـــــ**:- په خپله طبع ۔ په خپله مرضي ۔ په خپله خوښه ۔

**پـه ـــــ بوج "بودل"**:- (۱) پـه زړۀ باندې بـوج "بـودل" ۔ ناخوشګواره "بـودل" ۔ ناخوښه "بودل" ۔ (۲) د بدهضمۍ شکایت بودل ۔

**په ـــــ راست راتلل**:- په طبع راست راتلل ۔

**پـه ـــــ ناسازه لګېدل یـا راتلـل**:- (۱) پـه زړۀ بـد لګېـدل ۔ (۲) (د خوراک څیز) زړۀ خرابول ۔

**پـه ـــــ ناموافقه راتلـل**:- (۱) پـه زړۀ ښـه نـۀ لګېـدل ۔ (۲) (د خوراک نـه پس) زړۀ خرابېدل ۔

**د ـــــ قـوانین**:- (قَ+وا+نې+ن) (عـپ تـر ۔ اس ۔ ج) د فطرت قوانین ۔ د قدرت قوانین ۔

**د ـــــ ګراني**:- (ګ+را+نې) (۱) په طبیعت یا طبع باندې بوج ۔ د زړۀ خرابے ۔ څۀ خبره پـه زړۀ ښـۀ نـۀ لګېـده د طبیعت مکدر کېـدل ۔ سپک شان خفګان ۔ (۲) سپکه شان ناروغتیا (خصوصاً د ګېډې یا د بدهضمۍ له کبله) ۔

**د ـــــ مراوېتوب**:- د زړۀ تنګي ۔ د طبعي افسر دګي ۔ د زړۀ خفګان ۔

**عطایي ـــــ**:- (عَ+طا+یي) (عف تر ۔ اس ۔ مذ) هغه طبع یا قابلیت چې په ځاے وي ۔ (په زده کړه نۀ وي حاصل شوے) ۔

طبیعت مې عطایي نۀ د تحصیل دے
کـــه خبـــــر یم د املا پـــه استعمال (خوشحال)

**هر سړے د خپل ـــــ خاوند دے** :- هر سړے خپله خپله خوښه لري ۔ د هر چا خوښه جُدا جُدا وي ۔ هر څوک په خپله کار کول غواړي ۔

**طبیعتاً** :- (طَ+بي+عَ+تَ+ن) (ع ۔ تف) د طبیعت په طور ۔ فطري طور سره ۔

**طبیعته** :- (طَ+بي+يَ+تَ) (عـپ تـر ۔ لاحقه) د نـورو الفـاظو نـه وروسـتو د لاحقې په طور راوستے شي ۔

**بد ـــــ**:- (بَ+د) (عپ تر ۔ صف) د خراب طبیعت خاوند یا مېرمن ۔ سخت خویه ۔ تریخ طبع ۔

**تېز ـــــ**:- هغه څوک چې طبیعت کښې تېزي لري ۔ غصه ناک ۔

**خوش ـــــ**:- ټوقې/ټوقمار ۔ خنده رویه ۔ خوش رویه ظریف ۔ د ښۀ طبیعت خاوند یا مېرمن ۔

**رنګین ـــــ**:- هغه څوک چې ګڼ مزاحونه لري ۔ ټوقي ، ظریف ۔

**طبیعتي** :- (طَ+بي+يَ+تي) (عـپ تـر ۔ صف) (۱) خـوش طبـع ۔ ګـپ شـپي ۔

(۲) ټوقي۔ ټوقې مسخرې کوونکے۔

**طبعي** :- (طَ+بي+عي) (عف تر ، صفت) (۱) د طبيعت سره متعلق۔ (۲) فطري ۔ ځاے۔ طبعي۔ د ختې خلقي ، پيدائشي۔ جبلي۔ ذاتي۔

— **پيداوار**:۔ (پې+دا+وا+ر) (عف تر ۔ اس ۔ مذ) د قدرتي څيزونو پيداوار۔

— **جغرافيه**:۔ (جُ+غ+را+في+يَ) (عپ تر ۔ اس ۔ مذ) فزيکل جغرافيه۔

— **حرارت** :۔ (حَ+را+رَ+ت) (عپ تر ۔ اس ۔ مذ) د بدن هغه ګرمي کومه چې د فطرت مطابق وي۔ فطري حرارت۔ غريزي حرارت۔

— **ده چې**:۔ (جمله) دا قدرتي يا فطري امر دے چې

— **علوم**:۔ (عُ+لُو+م) (عپ تر ۔ اس ۔ ج) هغه علوم چې طبعي يا طبيعت سره تعلق لري۔ د فطرت په حقله عملونه۔

— **مرګ**:۔ (مَ+ر+ګ) (عپ ۔ اس ۔ مذ) هغه مرګ چې د فطرت مطابق واقع شي۔ په خپل مرګ مړکېدل۔

— **منابع**:۔ (مَ+نا+بې+ع) (عف تر ۔ اس ۔ مذ) د قدرتي پيداوار ۔ لاس ته راتلو ځايونه يا ذريعې (نيچرل ري سورسز)۔

— **ورېښم**:۔ (و+رې+خ+م) (عپ تر ۔ اس ۔ جم) هغه رېښم چې په قدرتي ذريعه حاصلېږي۔

**طبيعيات** :- (طَ+بي+عي+يا+ت) (ع ۔ اس ۔ جم) هغه علم چې په کښې د مادي يا د اجسامو د تغير و تبديل ، اوړېدلو راوړېدلو او د هغوي د خواصو وغېره ؤ په حقله بحث کولے شي۔ (انګ:فزکس)۔

**طبيعيون** :- (طَ+بي+عي+يُو+ن) (ع ۔ اس ۔ ج) طبعي يا د طبيعياتو علم سره تعلق لرونکي۔ د طبيعاتي علم مهاجرين۔

**طبيله** :- (طَ+بې+له) (ع ۔ اس ۔ مو ، ج ۔ لې) طويله۔ د اسونو د تړلو ځاے۔ اصطبل

ستا پخوا د طبېلو څښتن وګوره چې په وګوره
چې په کور باندې ئې ګرځي غوا وخرې (خوشحال)

**طپانچه** :- (طَ+پا+ن+چَ) (ف ۔ اس ۔ مو ، ج ۔ چې) (۱) څپېړه ۔ تپېړه ۔ (۲) طماچه۔

افلاطون لکه هلک طپانچه وخور کړي
چې له عشقه په سر راشي لېوني (حميد)

**طرابلس** :- (طَ+را+ب+لَ+س) (اس ۔ مع) (۱) په قطبي افريقه کښې د يو ملک نوم چې پخوا هم په کښې د مسلمانانو باچاهي پاتې شوې ده او اوس هم يو اسلامي ملک دے۔ (يورپين ورته ټرپولي يا ټرفولي وائي)۔ (۲) د پخواني شام او د اوسني لبنان يو ښار۔

**طراح** :- (طَ+ر+را+ح) (عف ۔ صف ، مذ ، مو ۔ ه) نقاش۔ نقش و نګار کوونکے۔

**طراحي** :- (طَ+ر+را+حي) (عف تر ۔ اس ۔ مو) نقشه جوړول۔ ډيزائن جوړول ۔ پلان جوړول۔

— **کول**:۔ نقشه جوړول۔ نقش راکښل۔

ګاه د مزکې طراحي کړې
ګاه په عرش کښېږدي اساس (خوشحال)

**طرار** :- (طَ+ر+را+ر) (ف ۔ صف ، مذ ، مو ۔ ه) (۱) تېرې ژبې واله۔ تېره ژبې۔ (۲) تېز او چالاک ۔ شوخ۔

زړۀ مې ستا طرارې ته هوس کا
ځان مې ستا غمزې بيمارې ته رښتيا مري (خوشحال)

(۳) ګڼ ګپ۔ حيله ګر۔

**طراري** :- (طَ+ر+را+ري) (عف تر ۔ اس ۔ ري) (۱) تېز ژبتوب۔ تېرۀ ژبه لرنه۔ (۲) چالاکي ۔ شوخي ۔ (۳) ګڼ کپي ۔ حيله ګري۔

**طراز** :- (طَ/طِ+را+ز) (ع ۔ اس ۔ مذ) (۱) نقش و نګار (د هر څيز) زېب و زينت۔

(۲) ښکلا ۔ ښائست۔

**طراز** :- (طَ+را+ز) (عف ۔ صف مذ ، مو ۔ ه) نقش و نګار کوونکے ۔ زېب و زينت ورکوونکے ۔ جوړوونکے ۔ سازونکے ۔ (عموماً نورو الفاظو سره راځي)۔

د تشبيه چندڼ ، چووه ، باندې طرازه
(خوشحال)

چې نارې کا تور تارو په مرغزار کښې
باز جره ئې ښې يوسي د طراز (خوشحال)

(۲) طرز ۔ انداز ۔ ښکلا ۔ ښائست۔

راشه وګوره دا طراز زما
حقيقت سره قرين مجاز زماذ (خوشحال)

**جدت** —:۔ (ج+د+دَ+ت) (عف تر ۔ صف ، مذ ، مو ۔ ه) جدت پيدا کوونکے۔ نوے کار يا څيز اختراع کوونکے۔

**جلوه** —:۔ (جَ+ل+وه) (عف تر ۔ صف مذ ، مو ۔ ه) جلوه ښودونکے ۔ د مخ د ښائست د ښکلا نمائش کوونکے۔

نوې نوې ښېوې کا درته جوړېږي
په څو رنګه جلوه کا ، جلوه طرازي (خوشحال)

**شان** —:۔ (شا+ن) (عپ تر ۔ صف ، مذ ، مو ۔ ه) شان جوړوونکے ۔ ځان ښووُونکے ۔ نخرې کوونکے۔

**طرازي** :- (طَ+را+زي) (عپ تر ۔ اس ۔ مو) طراز سره متعلق۔

**جدت** —:۔ (ج+د+دَ+ت) (عپ تر ۔ اس ۔ مو) نوے نوے څيز راپېدا کول۔ نوے کار يا څيز اختراع کول۔

**شان** —:۔ (شا+ن) (عپ تر ۔ اس ۔ مو) شان جوړوونه ۔ مجازاً ځان ښودنه ۔ د ځان نمائش ۔ نخرې کوونه۔

**طراوت** :-(طَ+را+وَ+ت) (ع ۔ اس ۔ مذ ، ج ۔ ونه) تازګي ۔ تري ۔ تر و تازګي ۔ تاندوالے۔

— **بخښل**:۔ تري او تازګي ورکول ۔ تازه کول ۔ تاندوالے بخښل۔

— **کښېښودل**:۔ تازګي پېدا کول ۔ تر و تازګي ورکول۔

د طهره د زهره مينه طارې نه وه
خوش ګفتار ئې په خاطر کښې طراوت
ږدي

— **ناک**:۔ (نا+ک) (عف تر ۔ صف ، مذ ، مو ۔ ه) هغه چې طراوت لري۔ تر و تازه ۔ تاند

**طراوه** :- (طَ+را+وا) (ع ۔ اس ۔ مو ، ج ۔ وے) هغه رنګينه کپړه کومه چې د نشان يا جهنډې د پاسه تړلے شي۔

**طرب** :- (طَ+رَ+ب) (ع ۔ اس ۔ مذ ، ج ۔ ونه) خوشحالي ۔ خوښي ۔ مسرت ۔ ښادمندي د زړۀ خوشحالي ۔ (د طرب په خوښۍ کښې مبالغه ده او مستي هم پکښې شامله ده)۔

— **انګيز**:۔ (اَ+ن+ګې+ز) -----------------

— **افزا**:۔ (اَ+ف+زا) -----------------

— **خېز**:۔ (خې+ز) -----------------

— **فزا**:۔ (فَ+زا) (عف مرکبات ۔ صف ، مو ۔ ه) خوشحالي پېدا کووونکے ۔ خوښي ورکوونکے يا زياتوونکے ۔ مسرت راوستونکے

— **ناک**:۔ (نا+ک) (عپ تر ۔ صف ، مذ ، مو ۔ ه) خوشحالي پېدا کوونکے ۔ خوشحالي ته زنګېدونکے ۔

طرب ناکه ګرېوان چاکه تل بې باکه تش تپاکه
زړۀ ئې سخت لکه اهن په مخ ائينه بې (خوشحال)

**طرح** :- (طَ+رَ+ح) (ع ـ اس ـ مو ، ج ـ حې)(۱) طور ـ طریقه ـ وضع ـ انداز ـ (۲) بنیاد ـ بونسټ ـ (۳) هغه مصرع چې د مشاعرې د پاره شاعرانو ته وړاندې کولې شي چې په دې وزن او قافیه او ردیف کښې خپل شعرونه جوړ او وړاندې کړي ـ (په پښتو کښې "طرحه" هم وائي)

**ــــ دار**:- (دا+ر) (عف تر ـ صف ، مذ ، مو ـ ه) ډولے ـ ښکلے ـ ښاپسته ـ اراسته ـ شوے ـ سنبال شوے ـ

**ــــ کښېښودل**:- بنیاد کښېښودل ـ نوے انداز یا طور طریقه وضع کول ـ نوې لار جوړول ـ

**طرحه** :- (طَ+ر+حَ) (اس ـ مؤ) د لرې کولو او ګذارولو عمل ـ

**ــــ کول**:- لرې کول ـ بېرته کول ـ

په سقمو نیاد توبې طرحه کړه سقم نفساني
شکم به پاک له خُبْثه نۀ کړي بې له دې جلابه (حافظ)

**طرحي** :- (طَ+ر+حي) (عف تر ـ صف) طرحې سره تعلق لرونکے ـ د طرحې مطابق عموماً د مشاعرې هغه غزل یا کلام په حقله وئیلے شي چې د طرحې د مصرعې مطابق جوړولے شي ـ

**طرخان** :- (طَ+ر+خا+ن) د ترکستان یو بادشاه ـ د ترکو یو قام ـ

**طرز** :- (طَ+ر+ز) قاعده ـ طریقه ـ روش ـ انداز ـ

**طرف** :- (طَ+رَ+ف) اړخ ـ رُخ ـ لحاظ ـ ټکړه ـ حصّه ـ

**طرف دار** :- (طَ+رَ+ف+دا+ر) جانبدار ـ هغه څوک چې په مقابله کښې یو اړخ، یو موقف ، یو کس یا یوې ډلې سره ودرېږي ـ

**طرفداري** :- (طَ+رَ+ف+دا+ري) یو اړخ ته کېدنه ـ جانب داري ـ

**طرفونه** :- (طَ+رَ+فو+نَ) د طرف جمع ـ

**طرفین** :- (طَ+ر+في+ن) دواړه اړخه ـ دواړه ډلې ـ

**طریق** :- (طَ+ري+ق) (لار ـ طرز ـ مذهب ـ

**طریقت** :- (طَ+ري+قَ+ت) لار ـ اصطلاحاً د تصوف په معنیٰ استعمالولے شي ـ

**طریقه** :- (طَ+ري+قَ) وګورئ ـ "طریق" ـ

**طعام** :- (طَ+عا+م) خوړۀ ـ هر څۀ چې د خوراک د پاره پکارولے شي ـ

**طغرا** :- (طُ+غ+را)(تر ـ اس) (۱) د خط یو قسم ـ (۲) نخښه ـ علامت ـ

**طغراکش** :- (طُ+غ+را+کش) هغه سړے چې طغرا لیکي ـ طغرانګار یا طغرا نویس هم لیکلے شي ـ

**طغرل** :- (طُ+ږ+رُ+ل) (اس) یوه ښکاري مرغۍ ـ

**طغرل** :- (طُ+غ+ر+ل) (اس ـ مذ) د سلطان ادل بن محمد سلجوق نوم څوک چې په ۱۱۳۲ ء کښې د عراق بادشاه شوے وۀ ـ

**طغرل بیګ** :- (بې+ګ) (اس ـ مذ) د سلطان محمود غزنوي ملازم چې روستو د نېشاپور بادشاه شو ـ عراق او بغداد ئې هم فتح کړو او په ایران کښې ئې د سلجوقي خاندان بنیاد کښېښودو ـ

**طفل**:- (ط+فُ+ل) (اس ـ مذ) وړوکے هلک ـ ماشوم بچے ـ

**طفلان** :- (طِ+ف+لا+ن) د "طفل" جمع ده ـ هلکان واړۀ ـ

**طفولیت** :- (طُ+فو+لي+يَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه)(۱) ماشوم والے ـ هلکوانے ـ کچ عمري ـ وړوکے عمر ـ(۲) مجازاً ـ د ناپوهۍ عمر ـ د ناتجربه کارۍ عمر ـ (۳) ناپوهي ـ کم عقلتوب ـ ناتجربه کاري ـ

**طفیل** :- (طُ+في+ل) (ع ـ اس) (۱) ذریعه ـ سبب ـ واسطه ـ وجه ـ (۲) مـخ ـ خاطر (۳) (وــــ طفېلي)

**په ــــ**:- په سبب ـ په سبب ، له برکته په مرسته ـ

دواړه کونه په طفېل د هغه دي
مرتب او مهیا پــه ډېر رونقه (خوشحال)

**له ــــ**:- په سبب ـ په ذریعه ـ له برکته ـ

غوړ لاهم ستا له طفېله خط حاصل کا
مغني شي عندلیب په څوګو سوزه (خوشحال)

**طفېلي** :- (طُ+فې+لي) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ان) نابللے ـ بل چا سره په دعوت خوړه) کښې شریکېدونکے ـ نابللے مېلمه چې بل چا سره بې بلنې راغلے وي ـ (اصلاً طفېل د کوفې د یو پخواني شاعر نوم دے ـ ددۀ عادت وۀ چې نا بللے به د شرابو په مجلسونو کښې (یا په خوړو کښې) شامل شو ـ وروستو د طفېلي لفظ د داسې سړي د پاره استعمالېدل شروع شو ـ څوک چې بې بللو په پردو خوړو (دعوتونو) کښې شاملېږي) ـ

**ــــ نباتات**:- (نَ+با+تا+ت) (عف تر ، اس ـ ج) هغه بوټي کوم چې په نورو بوټو باندې پائي ـ

**طلا** :- (طِ+لا) (ع ـ اس ـ مو ، ج ـ ګانې) (۱) سرۀ زر ـ خالص سرۀ ـ

درویشان که اشارت وکه و غرۀ ته
د غــرۀ کاڼي به هم شي لکه طلا (خوشحال)

(۲) په بدن د لیو کولو هغه نرم ملهم چې په تېلو وغېره کښې جوړولے شي او په بدن مړلے کېږي ـ (که دا ملهم ټینګ وي نو د طب په اصطلاح کښې ورته ضما وائي) ـ(دا عموماً د ذکر د کمزورتیا د پاره استعمالولے شي)(۳) یوه پخوانۍ د سرو زرو سکه ـ (۴) د زرو نه جوړ شوي تارونه چې د سپینو زرو او د سرو زرو په شان رنګ لري او د نري ریښمین (یا سپېن سین) تار د پاسه خېژولے شوے شي ـ (ټوپۍ قولې او پېزارونه وغېره جوړولو کښې پکارولے شي) (په پښتو کښې ئې عموماً تلفظ طیله یا تېله کولے شي) ـ

**ــــ کار**:- (کا+ر) (عف تر ـ اس /مف ، ج ـ ان ، مو ـ ه)(۱) د سرو زرو کارونو کوونکے ـ زرخېزوونکے ـ (۲) د زرو د تارونو کار کوونکے ـ

**ــــ کاري**:- (کا+ري) (عف تر ـ اس ـ مو) د طېلي کار ـ په څۀ شیز طېله خېژونه ـ

**ــــ کوب**:- (کو+ب) (عف تر ـ اس ـ مذ ، ج ـ ان ، مو ـ ه) زر ټکوونکے ـ هغه کس چې د زرو نه په ټکولو زر ورق جوړوي ـ زرورق جوړوونکے ـ

**ــــ کوبي**:- (کو+بي) (عف تر ـ اس ـ مو) د طلا (زرو) ټکوونه ـ یعني د سپینو او سرو زرو نه په ډېر ټکولو ورق جوړوونه ـ

**د شګو ــــ**:- هغه زر چې د شګو وینځلو نه حاصل شوي وي ـ

**سنګي ــــ**:- سخت زر ـ هغه زر چې په کاڼي کښې ګډوډ پراتۀ وي ـ

**طلاب** :- (طُ+ل+لا+ب) (ع ـ اس ـ ج) د "طالب" عربي جمع ده ـ طالبان طالب علمان ـ

**طلاطم** :- (طَ+لا+طُ+م) (ع ـ اس ـ مذ)د "تلاطم" بدل شکل دے ـ (۱) په خپله کښې یو بل له ټېپرې ورکول ـ (۲) مجازاً د سمندر د موجونو په خپله کښې جنګېدل او دیو موج ، بل موج دیکه کول ـ غورځنګ ـ

**طلاق** :- (طَ+لا+ق) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) د وادۀ کړې ښځې د نکاح د قېد خلاصېدل ـ نکاح نه پاتې کېدل ـ د ښځې خاوند په خپله جدائي ـ د ښځې پرېښودنه ـ ازادي ـ

**ــــ اخول**:- (۱) د طلاق قسم ورکول لکه ته واخوه طلاق چې تا دا کار نه دے کړے ـ(۲) په طلاق قسم خوړل ـ (۳) طلاق ورکول ـ

طې پائي بند شو د لیلی په اشتیاق
مجنون واخوۀ و نــورو ته طلاق (رحمان)

**ــــ اخیستل**:- ---------------

**یا ــــ اغښتل**:- د ښځې د خپل خاوند نه ازادي خیستل/اغېشتل ـ د

نکاح د تړون نه د عدالت یا د قاضي په حکم ځان ازادول ـ دې ته خلع هم وئیلے شي ـ

**بائن ـــــ** :ـ (با+ئي+ن) ـــــــــــــــــــــــ

**بائنه ـــــ** :ـ (با+ئي+نَ) د طلاق هغه قسم دے چې خاوند بغیر ددې نه چې نوے نکاح وکړي ـ خپلې طلاق کړې ښځې سره نهٔ شي یو ځاے کېدے یا دغه دواړه د ښځې خاوند په حیث ژوند نهٔ شي تېرولے ـ (داسې طلاق چې کنایو ورکړے شوے وي).

**ـــــ ثلاثه** :ـ (ثَ+لا+ثَ) (۱) درې ځله طلاق ورکول ـ (وقفې وقفې سره) (۲) په یو ځلې درې طلاقه ورکول ـ (وـــــــ مغلظ طلاق) ـ

**حسن ـــــ** :ـ (حَ+سَ+ن) (اس ـ مذ) هغه طلاق چې په ښه طریقه ورکړے شي ـ یعني باقاعده طور سره ـ وقفې فقرې سره اول ځل ، بیا دویم ځل او بیا اخري یعني دریم ځل ورکړے شي.

**خلع ـــــ** :ـ (خُ+ل+ع) (اس ـ مذ) هغه طلاق په کوم کښې چې ښځه خپل خاوند له د طلاق په بدل کښې څهٔ (نغدې وغېره) ورکړي او د خاوند نه ځان ازاد کړي ـ

**رجعي ـــــ** :ـ (رَ+ج+عي) (۱) راګرځېدونکے طلاق ـ (۲) پس د عدت د ورځو دننه دننه خاوند خپله ښځه بغېر د نوې نکاح نه د ښځې په طور ساتلے شي ـ (په دې طلاق کښې یوه یا دوه ځله طلاق وئیلے شي).

**مغلظ ـــــ** :ـ (مُ+غَ+ل+لَ+ظ) ټینګ طلاق ـ داسې طلاق چې خاوند ددغې طلاق د ورکولو نه پس خپلې طلاقې کړې ښځې سره تر هغې پورې په نکاح نهٔ شي کولے تر کومه چې دغه ښځه بل کوم سړي سره نکاح ؤنهٔ کړي او بیا ورله دغه خاوند طلاق ور نهٔ کړي ـ (داسې طلاق کښې درې ځله طلاق ورکولے شي) او د ځینو په عقیده په یو وخت کښې درې ځله طلاق ورکړے شوے وي) ـ

**په درې کـاڼي ـــــ** :ـ (۱) داسې طلاق چې خاوند ښځې ته درې کاڼي وغورځوي او وائي چې یو ، دوه ، درې ، یعني ما درله درې ځله طلاق درکړو ـ (ځینې وخت د کاڼو غورځول ضروري نه ګڼلے کېږي ـ تشه د خولې وینا کافي ګڼلے شي) ـ (۲) په پښتو کښې دا یو ډېر سخت قسم دے لکه په تادې ښځه په دریو کاڼو طلاقه وي چې تا دا غلا نهٔ ده کړې ـ

**په دریو کاڼو ـــــ ورکول** :ـ غلیظ طلاق ورکول ـ درې ځله طلاق ورکول ـ

**په ـــــ قسم خوړل** :ـ د طلاق قسم خوړل ـ یعني په مادې ښځه طلاقه وي چې ــــــ ، ـ

**طلاقنه** :ـ (طَ+لا+ق+ن+ړَ) (عپ تر ـ اس ـ مو ، ج ـ ړي) (۱) طلاقه شوې ښځه ـ هغه ښځه چې خاوند پرېښې وي ـ مطلقه ـ (۲) د کنځلو په طور هم استعمالېږي ـ

**طلاقول** :ـ (ط+لا+قَ+ؤ+ل) (مص) طلاق ورکول ـ ښځه د نکاح د قېده ازادول ـ

**په دریو کاڼو ـــــ** :ـ ښځې له غلیظ طلاق ورکول ـ

**طلاقي** :ـ (طَ+لا+قي) (عپ تر ـ صف) (۱) هغه سړے چې ښځې له ئې طلاق ورکړے وي ـ هغه کس چې خپله ښحه ئې پرېښودلې وي ـ (۲) په پښتو کښې طلاق ورکول ډېر بد کار ګڼلے شي ځکه د کنځلو په طور استعمالېږي ـ

**طلاقېدل** :ـ (طَ+لا+قې+د+ل) (مص) (۱) ښځه د نکاح د بند نه ازادېدل ـ (۲) په ښځه د طلاق نافذ کېدل ـ

**طلائي** :ـ (طَ+لا+ئي) (عپ تر ـ صف) (۱) د طلا (سرو زرو) نه جوړ شوے څیز ـ (۲) دَ طلاق (سرو زرو) د رنګ ـ

**ـــــ مرغی** :ـ (مَ+ر+غَ+ی) (عپ تر ـ اس ـ مو) د سرو زرو مرغی ـ مجازاً هغه سړے چې ترې نه ډېر فائده حاصلېدې شي ـ

**طلایه** :ـ (طَ+لا+يَ) (ف ـ اس ـ مو) (۱) هغه فوځي ډله ، کومه چې د شپې په وخت کښې د ښار یا د خپل لښکر څوکی کوي او ګشت کوي ـ (اصلاً دا لفظ په عربی کښې د "طلائع" دے ـ طلایه ئې بدل شکل دے) ـ (۲) د لښکر هغه دسته کومه چې د لښکر نه وړاندې ځي ـ

**طلب** :ـ (طَ+لَ+ب) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) (۱) لټون ـ تلاش ـ غوښتنه ـ (۲) خواهش ـ (۳) تنخواه ـ مشاهر ـ (۴) راغوښتنه ـ حاضري ـ

**ـــــ دار** :ـ (دا+ر) (عف تر ـ اس ـ ج ـ ان ، مو ـ ه) (۱) طلب لرونکے ـ تنخواه واله ـ (۲) د څهٔ څیز خواهش لرونکے ـ غوښتونکے ـ

**ـــــ کول** :ـ غوښتنه کول ـ غوښتل ـ (فشار په طلب باندې)

**ـــــ کول** :ـ رابلل ـ راغوښتل ـ (فشار په کول باندې)

**ـــــ ګـار** :ـ (ګا+ر) (عـف تـر ـ اس ـ مـذ ، ج ـ ان ـ مـو ـ ه) طلب کـوونکے ـ غوښتونکے ـ غوښتنه کوونکے ـ خواهش لرونکے ـ خواهش مند ـ

چا چې تاته کړے یو نظر دے په درست عمر
څو په دنیا پائي نـور به تل وېي طلبګار ستا (خوشحال)

**ـــــ ګاري** :ـ (ګا+ري) (عف تر ـ اس ـ مو) (۱) طلب کوونه ـ غوښتنه ـ خواهش لرنه ـ (۲) لټونه ـ لټون کوونه ـ

**ـــــ نامه** :ـ (نا+مَ) (عف تر ـ اس ـ مو ، ج ـ مې) د عدالت د طرفه ، په عدالت کښې د حاضرېدو حکم ـ سمن ـ

**طلباء** :ـ (طُ+لَ+با) (ع ـ اس ـ ج) (۱) د طالب جمع ده ـ په معنٰی لټوونکے خو عام طور سره دا لفظ اردو ، فارسي پښتو وغېره ژبو کښې د طالب علمانو دپاره استعمالېږي او د "طالب" جمع ګڼلے شي ـ (۲) مبتدیان ـ شاګردان ـ

**طالبانه** :ـ (طَ+ل+با+نَ) (عف تر ـ اس ـ مو ، ج ـ نې) (۱) هغه رقم یا فیس کوم چې د ګواه وغېره په عدالت کښې د حاضرېدو ، د خرچ په طور وصولولے شي ـ (۲) د چپړاسیانو یا سپاهیانو د ورځې خرچ

**ـــــ داخلول** :ـ د طباني فیس (رقم) په خزانه کښې داخلول چې ګواه وغېره ته ترې ادائیګي وکړے شي ـ

**طلبول** :ـ (طَ+ل+ب+ؤ+ل) (مص مت) (وـــــــــ طلب کول)

**طَلَبـه** :ـ (طَ+لَ+بَ) (ع ـ اس ـ ج) (۱) د "طالب" جمع ده ـ طالبان ـ طالب علمان ـ د طالب علمانو د پاره صحیح لفظ هم دا دے خو ددې په ځاے عموماً "طلباء" استعمالېږي ـ (۲) مبتدیان ـ شاګردان ـ

**طلحـه** :ـ (طَ+ل+حَ) (اس مـع) د یـو مشـهور صحابي نوم ـ چې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د ترهٔ زوے وهٔ ـ د جمل په جنګ کښې شهید کړے شو ـ

**طلسم** :ـ (ط+ل+س+م) (یو ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه ، عرج : طلسمات) (۱) داسې تماشه چې ډېره عجیبه ښکاري یا موم هوم څیزونه چې په عجیبه شکلونو ښکاره کړے شي ـ (۲) جادو ـ سحر ـ (۳) هغه ویرونکے شکل چې د خلقو د ویرولو د پاره جوړ کړے شي لکه د اژدها شکل چې د خزانې د پاسه به جوړولے شي ـ

**ـــــ ماتول** ، د چا :ـ د چا د جادو یا د سحر یا د کوډ چلی کار رد کول ـ د چا راز یا فریب برخېره کول ـ

**طلسمات** :ـ (ط+ل+س+ما+ت) (اس ـ ج) د طلسم جمع ده ـ (وـــــــ طلسم) (دا لفظ دَ جمع او واحد دواړو د پاره استعمالېږي) ـ

**طلسماتي** :ـ (ط+ل+س+ما+تي) (اس ـ صف ـ مو) هغه چې طلسمات سره تعلق لري ـ د جادو یا سحر ـ

**طلسمي** :- (طِ+ل+س+مي) (عف تر ـ صف) طلسم سره تعلق لرونکے ـ سحر یا جادو ته منسوب ـ د جادو سحر اثر لرونکے ـ لکه طلسمي لاکټ ـ

**طلعت** :- (طَ+ل+عَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) (۱) دیدر ـ مخ کتنه ـ (۲) مخ ـ شکل ـ څهره ـ صورت ـ عموماً نورو الفاظو سره راځي ـ لکه ماه طلعت ـ

**ماه ـــــ**:- (ما+ه) (عف تر ـ صف ، مذ ، مو ـ ه) د سپوږمۍ په شان مخ لرونکے ـ مجازاً ډېر زيات ښائسته ـ

**طلوع** :- (طُ+لُو+ع) (ع ـ اس ـ مذ) راختنه ـ ښکاره کېدنه ـ (عموماً ـ نمر ، سپوږمۍ او دستورو په حقله وئيلے شي) ـ

**ـــــ کېدل**:- (راختل (د نمر سپوږمۍ وغېره) رابرڅېره کېدل ـ په بره کېدل ـ

**طلېطله** :- (طُ+لې+طَ+ل) (اس مع) د هسپانيه (سپين) ملک د يو ښار پخوانے نوم دے چې مسلمانانو پرې په سوونو کالو پورې بادشاهي کړې وه ـ نن صبا وره ټولېډو راځي ـ

**طماچه** :- (طَ+ما+چَ) (ف ـ اس ـ مو ، ج ـ چې) څپېړه ـ تپېړه ـ پړق ـ

غنچه ګل چې ستا له خولې سره سيالي کړه
خولـــۀ مې باد پــــــــه طماچه کړ له فراخه (خوشحال)

(اصلاً دا لفظ د هندي تماچـه دے ـ د"ط" د عربي الفاظو کښې راځي ـ او دا لفظ عربي نه دے)

**طماچه** :- (طَ+ما+چَ) (اس ـ مو ، ج ـ چې) مشهور اتشينه الـه چې ګولۍ پرې ويشتلے کېږي ـ ريوالور ـ توپانچه ـ

**په ـــــ ويشتل**:- د پستول يا ريوالور په ګولۍ ويشتل ـ

سترګې دې ډکې تماچې دي
زۀ دې په ډکو تماچو ويشتلے يمه (ټپه)

**طماع** :- (طَ+م+ما+ع) (ع ـ صف ، مذ ، ج ـ عه) ډېر زيات طمع کوونکے ـ ډېر حرصي ـ ډېر لالچ کوونکے ـ ډېر وږ سترګے ـ

**طماغه** :- (طَ+ما+غَ) (اس ـ مو ، ج ـ غې) ټوپۍ ـ هغه ټوپۍ چې د باز سترګو ته تړلے شي ـ تماغه ـ

که يو ځل ئې طماغه له سر پرېوځي
نـور و باز و ته څـــوک ښئي وهنه
(خوشحال)

**طمانينت** :- (طَ+ما+ني+نَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) اطمينان ـ تسله ـ تسلي ـ د زرۀ سکون ـ (صحيح تلفظ ئې د "ط" پېښن سره دے خو عام طور سره د "ط" زور سره وئيلے شي ـ ځينې خلق دويم "نون" ترې حذف کړي او "طمانيت" وائي چې درست نۀ وي خو مشهور شوے دے) ـ

**طمانيت** :- (طَ+ما+ني+يَ+ت) (وـــــــ طمانينت)

**طمطـراق** :-(طُ+م+طُ+را+ق) (ع ـ اس ـ مذ) شان و شوکت ـ کروفر ـ (رعب داب ـ دبدبه ـ

تل کـــــه دا وي د خـــوبۍ طمطـــراق ستا
نور دې لاس له ځانه پرې وينځي عشاق ستا
(خوشحال)

(عام طور سره د دواړو طې ګانو زور سره (طمطراق) وئيلے کېږي چې درست نۀ دے خو غلط العام دے) ـ

**په ـــــ کښې** :- (کې)

**په ـــــ سره**:- (سَ+رَ) په ډېر شان شوکت ـ په ډېر درز دروز کښې ـ شان شوکت سره ـ درز دروز سره په رعب داب کښې يا رعب داب سره ـ

**طمع** :- (طَ+مَ+ع) (ع ـ اس ـ مو ، ج ـ مې)(۱) حرص ـ لالچ ـ(۲) اميد ـ توقع ـ (ددې لفظ تلفظ بالعموم "طَمَع" کولے شي ـ د "ع" اواز هم څرګندولے شي ـ ځينې خلق ئې طمه هم ليکي چې درست ليک نۀ دے)ـ

**ـــــ پرې کول**:- طمع غوڅول ـ اميد قطع کول ـ توقع نه لرل ـ

حرص مه کړه هوا پرېږدهله هر چـا پرېکړه طمع
بل نوم به په تا نۀ پردم په ځان نوم کښېږده سلطان
(خوشحال)

**ـــــ دار**:- (دا+ر) (عف تر ـ صف ، مذ ، مو ـ ه) طمع لرونکے ـ اُميد لرونکے ـ اميدوار توقع لرونکے ـ

نۀ به بيا ستا سپينه خولۀ حوض کوثر شي
نـــۀ بـــه بيا ورتـــه هر ترے طمع دار شي (حافظ)

**ـــــ داري**:- (دا+ري) طمع کوونه ـ اميد لرنه ـ توقع لرنه ـ

کړې وروځې ئې کړه د اختر مياشت ده
عام و خاص ئـې د ديدن طمع داري کا (حافظ)

**ـــــ کول**:- توقع کول ـ اميد لرل ـ

**ـــــ کېدل**:- اميد کېدل ـ توقع کېدل ـ

دا ګېله مـــې ډېره ډېره د هغـــو شي
هر چې طمع ترې د ښو کېږي بسياره (رحمان بابا)

**ـــــ لرل**:- اميد لرل ـ توقع لر ـ اميد وار "بودل" ـ

تۀ چې معطل ناست ئې تعطيل نخښنه د قنوط ده
طمع مګـــــر نـــۀ لـــري د دوست له استقباله (حافظ)

**ـــــ لنډېدل**:- طمع مختصره کېدل ـ طمع ختمېدل ـ اميد نه پاتې کېدل ـ طمع ئې لنډه شوه ـ

**په ـــــ**:- په اميد کښې ـ د څۀ کار د کېدلو په انتظار کښې لکه زۀ په طمع تۀ بې غمه (متل) ـ

**په ـــــ وسېدل**:- اميد لرل ـ توقع کول ـ

ددې کلي طبيبان واړه ناترس دي
د دارو پـــــه طمع مه اوسه بيماره (خوشحال)

**په ـــــ طمع**:- (پَ+طَ+مَ+ع) په اميد اميد کښې ـ د څۀ کار د کېدو په اميد يا په انتظار کښې لکه طمع طمع کال تېر شو ـ

**دومره ـــــ نه "بودل"** د چانه :- (جمله) د طمعې او اميد نه زيات کار تر سره کېدلو په موقع وائي لکه فلانې نه مې دومره طمع نه وه چې دا کار به تر سره کړي ـ

**طمع توقع** :- (طمع او توقع دواړه تقريباً هم معنٰی لفظونه دي ـ د توقع لفظ د تاکيد د پاره راغلے دے) ـ طمع اُميد ـ توقع ـ

**ـــــ کول**:- اميد لول ـ هيله لرل ـ

که زۀ طمع توقع له بله نۀ کړم
د بل طمع تـــوقع کېږي له ما (رحمان بابا)

**ـــــ کېدل**:- طمع کېدل ـ اميد کېدل ـ توقع کېدل ـ

که زۀ طمع توقع له بله نۀ کړم
د بل طمع تـــوقع کېږي له ما (رحمان بابا)

**طمعې** :- (طَ+مې)+يا+(طَ+م+عې) (۱) د طمع جمع ده ـ (۲) د "طمع" اضافي يا مجروري وغېره شکل دے ـ (ددې لفظ تلفظ بالعموم طمې کېږي خو په شاعرۍ يا عالمانه انداز کښې د "ع" اواز هم ښکاره کولے شي)

**د ـــــ نښاني**:- د طمعې علامت ـ

د حـــــاتم د سخاوت خبرې مه کړه
لاپه دا کښې هم د طمعې نښاني ده (خوشحال)

**طناب** :- (طَ+نا+ب) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه)(۱) پړے ـ رسۍ ـ خصوصاً د تنبو (خيمې) پړے ـ تناؤ ـ

هر طناب ئې و دانا وته معلوم دے
دا خېمــــــه ولاړه نۀ ده بې طنـابه (خوشحال)

(۲) تار ـ مزے ـ لړ ـ

ـــــ **رابښکلې کېدل**:ـ پړے رابښکلے کېدل ـ مجازاً فاصله کمېدل یا لنډېدل ـ لکه د دنیا تناوونه اوس ډېر رابښکلے شوي دي ـ

**طناز** :- (طَ+ن+نا+ز) (ع ـ صف مذ ، مو ـ ه) په اشارو کنایو کښې خبرې کوونکے ـ په ناز نخرو خبرې کوونکے ـ شوخ ـ نخرې باز ـ

کـه هر څو دي ښېښتني جونه طنازې
دا د هند سکښې هم نۀ دي بې نیازې (خوشحال)

**طنازي** :- (طَ+ن+نا+زي) (عف تر ـ اس ـ مو) (۱) په اشارو کنایو خبرې کوونه ـ (۲) په ناز نخرو یون ـ شوخي ـ مکیځ توب ـ

**طناو** :- (طَ+نا+ؤ) (وـــــــ طناب)

**طنبور** :- (طَ+م+بُو+ر) (وـــــ طنبوره)

د بتو اوبنکې مې پاسه پر تارونه
بیلتانۀ په تن په مثل د طنبور کړم (خوشحال)

**طنبوره** :-(طَ+م+بُو+رَ) (ع ـ اس ـ مو ، ج ـ رې) د ستا په شان تارونو واله یو لوے ساز دے ـ (وائي چې دا د "تونبنه" موب دے ـ دې ساز ته تونبنه ځکه وائي چې ددې په سر کښې (خالي) کدو ترلے شوے شي خو ځینې وائي چې دا د "دنب بره" نه جوړ شوے وي یعنې د ګډ لم ځکه چې ددې یو سر د ګډ د لم په شان وي)ـ

**طنز** :- (طَ+ن+ز) (ع ـ اس ـ مذ ـ ج ، ونه) ټک ـ پېغور ـ طعنه ـ

نن ما خپل ګڼې له طنزه
ما خو نۀ زده هومره فن (خوشحال)

ـــــ **کول**:ـ ټک کول ـ (په اشاره کنایه کښې چاله) پېغور ورکول ـ طعنه ورکول ـ په ټوقه ټقاله کښې ټک کول ـ

ـــــ **نګار**:ـ (ن+ګا+ر) (عف تر ـ اس ، ج ـ ان ، مو ـ ه) هغه لیکوال چې په خپلو کښې په اشارو کنایو کښې ټکونه او اعتراضونه کوي ـ

ـــــ **نګاري**:ـ (ن+ګا+ري) (عف تر ـ اس ـ مو) د نثر نګارۍ یو خاص انداز چې په کښې لیکوال، اشارو کنایو کښې ټکونه کوي او طعنې ورکوي ـ

**طنزاً** :- (طَ+ن+زَ+ن) (ع ـ تف) د طنز په طور ـ د ټک په طور ـ د پېغور په انداز کښې ـ

**طنزیه** :- (طَ+ن+زي+يَ) (عف تر ـ صف) داسې خبره یا لیک چې په اشارو کنایو کښې پکښې ټک (یا ټکونه) شوي وي ـ

**طنطنــه** :- (طَ+ن+طَ+نَ) (ع ـ اس ـ مو ، ج ـ نې) (۱) تنها ـ د تن تن اواز ـ د طنبورې یا د بربط په شان د ساز د غړېدو اواز ـ (۲) مجازاً شان شوکت ـ کروفر ـ درز دروز (نغاره او نوبت وغېره سازونه د جوړې په شک کښې وي ـ یعنې دوه دوه وي ـ په دې کښې یو د زیر اواز ورکوي او بله جوړې ئې د بم اواز ورکوي او زیر اواز ته طنطنه (تنها) وائي او د بم اواز ته دبدبه (ډب ، ډب ډبار) وائي ـ

ـــــ **ښودل /ښېل**:ـ شان شوکت ښودل ، ځان ښئېل ـ

**طـواف** :- (طَ+وا+ف) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) (۱) د څۀ څیز نه چار چاپېره ګرځېدل ـ ګرد چاپېره چور لېدل ـ (۲) (اصطلاح کښې) د خانه کعبه (کعبې) نه چاپېره چکر لګول ـ

د مکې په بزرګۍ کښې هېڅ شک نشته
ولــې خــــر به حاجي نۀ شي په طواف (رحمان)

ـــــ **کول**:ـ (۱) د څۀ څیز نه چاپېره چکر لګول ـ (۲) د کعبې نه ګرد چاپېره ګرځېدل ـ (۳) د څۀ مقصد د پاره کوم سړي ته خواؤشا کېدل ـ

**طوّاف** :- (طَ+و+وا+ف)(ع ـ اس ـ مذ)ډېر زیات طوافونه کوونکے ـ

**طوال** :- (طَ+وا+ل) (ع ـ اس ـ مذ) (۱) اُوږد والے ـ (۲) ژوند ـ عمر ـ

**طوالت** :- (طَ+وا+لَ+ت)(ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) اوږدوالے ـ طول ـ غزېدنه

**طوالع** :- (طَ+وا+ل+ع) (ع ـ اس ـ مذ)(۱) د "طالع" جمع ده ـ (وـــ طالع)(۲) د منطق ـ د علم یو مشهور کتاب دے ـ

**طوامیر** :- (طَ+وا+مي+ر) (ع ـ اس ـ ج) د طـور مـار جمـع ده ـ (وـــــ طـور مار)

**طوائف** :- (طَ+وا+ئے+ف) (اُر ـ اس ـ مو) ګډېدونکې او سندرې ویونکې ښځه ـ ډمه ـ کنجرۍ ـ

**طوائف** :- (طَ+وا+ئے+ف) (ع ـ اس ـ ج) د "طائفه" جمع ده ـ طائفې ـ ټولې ـ ډلې ـ (وـــــــــــ طائفه)

ـــــ **الملوکي**:ـ (فُ+ل+م+لُو+کي)(ع تر ـ اس ـ مو) د یــو ملــک د نظــام داسې دور چې پکښې نظم و ضبط نه وي ـ هر امیر، وزیر او د زور قوت خاوند خپله رضا کوي او خپل حکم چلوي مجازاً بادشاه ګردي ـ بد نظمي ـ بې انتظامي سکها شاهي ـ اړے ګړے ـ

**طوبره** :- (طو+ب+ر) (اس ـ مؤ ، ج ـ ړے) توبر ـ توبره ـ

**طوبیٰ** :- (طُو+با) (ع ـ اس ـ مو)(۱) د "طیب" مؤنث دے چې معنیٰ ئې "ډېر خوشبویه" ده ـ(۲) په جنت کښې د یوې ونې نوم دے چې څانګې به ئې د هر جنتي په کور خورې وي ـ خوشبوۍ به ئې په هر کور کښې خوره وي او جنتیان به ترې هر قسمه مېوې حاصلوي ـ

مقــام زما کړے د طوبیٰ سورې
دیدار مې برخه نعمت مزید کړې (حافظ)

**د ـــــ ونه**:ـ (ؤ+نَ) (وـــــــــــــــ طوبیٰ) ـــــــــــــــــ

د طــــوبیٰ د ونــــې لاندې اسائش که
رزق ئې سېب انګور لفرجل ناک شي (حافظ)

**طوپ** :- (طو+پ) (اس ـ مذ) تُوپه ـ تُوپ ـ

**طور** :- (طُو+ر) (ع ـ اس ـ مذ)(۱) طرز ـ روش ـ چال ـ طریقه ـ

زار زما د زړۀ دے زار زما دے په دا کار کښې
که دا طــور بــه تل درومــي ایــــام د تمنـــــا (خوشحال)

اسمان طوره په رکوع شه
زمین طـــوره په سجود (رحمان بابا)

(۲) وضع ـ انداز ـ ادا ـ

چې تا وته نظر کړم نور مې هېر دي ښائسته
په طـــورَ دې مئین یم ګنه ډېر دي ښائسته (خوشحال)

ـــــ **اخیستل**:ـ طرز یا طریقه اختیارول ـ

چې مې طور ستا د تورو زلفو واخیست
ځکــــــه بــوۍ د مهر نۀ ځي له دنبله (خوشحال)

ـــــ **طریقه**:ـ (طَ+ري+قَ) دواړه یو معنیٰ لفظونه دي ـ چل طریقه ـ چال ډال ـ طرز ـ روش چال چلن ـ

ـــــ **طور**:ـ (طو+ر) رنګ رنګ ـ قسم قسم ـ

څو کړې ظلم جور په څو رنګه طور طور
وکړه فکـــــر غور اندېښنه د داد لره (خوشحال)

**په غېر ارادي** ـــــ سره /باندې:ـ بې ساخته ـ هغه کار یا عمل د کوم چې د اول نه اراده نۀ وي کړې شوې ـ

**په هر** ـــــ:ـ په هره طریقه ـ په هر چل ـ په هر رنګه ـ

**طور** :- (طُو+ر) (اس مع) د مشهور غر نوم دے چې په جزیرۀ نما سینا کښې دے ـ په دې غرۀ باندې حضرت موسیٰ علیه السلام ته تجلي شوې وه او شرعي احکام ورکړے شوي وو ـ حضرت موسیٰ علیه السلام په دې غر باندې څلوېښت ورځې تېرې کړې وې خو وروستو ئې قوم

يعني بني اسرائيلو د سرو زرو يو سخے جوړ کړو چې باد سره به ئې اواز کولو او ځينو کسانو ددې سخي عبادت شورو کړو چې سزا ورلـه ورکړے شوه. دا غر د يهوديانو د پاره خاص طور سره ډېر مقدس دے. مسلمانان ئې هم په برنې وجه د قدر وړ ګڼي (طور په سرياني ژبه کښې "غر" ته وائي ځکه نوم ئې طور سينا يعني د "سينا غر" وۀ خو د وروستو په "کوهِ طور" مشهور شو چې درست مرکب نه دے خو غلط العام دے. ځينې وائي چې دا نوم طور بن امفيل ته منسوب دے خو دا درست نۀ دے.

**طوس** :- (طُو+س) (طو+س) د خراسان په ملک کښې يو مشهور ښار دے. د مشهور کتاب "شاهنامه" مصنف فردوسي ددې ښار اوسېدونکے وۀ. فردوسي هم هلته ښخ دے خو دغه ښار اوس وران شوے دے. دا د مشهد ښار نه قطب ته خاتۀ طرف ته وۀ.

**طوطا** :- (طو+طا) (اس ـ مذ ، ج ـ ګان) د "طوطي" مذکر دے. يعني "نر طوطي" د طوطي لفظ په خپله هم د نر او ښځې دواړو د پاره استعمالېږي او عموماً د "طوطي" وئيلے شي خو د زياتي وضاحت دپاره د "طوطا" لفظ استعمالېږي. خصوصاً په شاعرۍ کښې.

**ــــ ګرګے** :- (ګَ+ر+ګَے) (اس ـ مذ ، ج ـ ګِي) ابابيل. مشهوره مرغۍ. طوطاګرګے.

**شين ــــ** :- (شي+ن) (و ـــ شين طوطي)

**طوطا خېل** :- (طو+طا+خېل) (اس مع) دا د بازيد خېلو څانګه ده او بازيد خېل، مداخېل، عيسیٰ زئ يوسفزي دي.

**طوطي** :- (طو+طي) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ان) (۱) مشهور ښکلے شين رنګے مارغۀ چې مښوکه او پنجې ئې تکې سرې وي او د بنيادمو د خبرو نقل هم کولے شي. په دې وجه ددې مارغۀ د ګوياېۍ په حقله ډېرې قيصې جوړې شوې وي. (اصلاً دا لفظ توتي دے. طوطي ئې عربي شکل دے. پښتو د عربۍ نه اخستے دے ځکه "ط" سره ليکلے شي او هم دغه ليک ئې درست دے). (۲) مجازاً ډېرې يا ښکلې خبرې کوونکے. خصوصاً هغه ماشوم چې ماتې ماتې خبرې کوي يا اول اول په خبرو ګويا شوے وي. (۳) د ځينو نارينه ؤ په نوم کښې هم استعمالېږي. (۴) د ماشومانو د سوخۍ د پاره هم استعمالېږي.

**ــــ چوري خوري**:- (جمله) دا يوه جمله ده چې عموماً هغه طوطيانو ته وئيلے شي کومو چې (لږې ډېرې) خبرې کول زده کړې وي. (چوري، د ساتلے شوو طوطيانو خاص خوراک دے).

**ــــ ګونګېدل**:- خبرې نۀ کول. چپ او غلے کېدل.

**ــــ مقال**:- (مَ+قا+ل) (عف تر ـ صف ، مذ ، مو ـ ه) د طوطي په شان خبرې کوونکے. مجازاً فصاحت سره خبرې کوونکے. فصيح بيانه

**ــــ نامه**:- (نا+مَ) (ف تر ـ اس ـ مع) د يو مشهور کتاب نوم دے چې پکښې د طوطيانو د خولې قيصې دي. په پښتو کښې ئې هم ترجمع شوې ده.

**شين ــــ** :- (شي+ن) (عپ تر ـ اس ـ مذ ، ج ـ شنه طوطيان)(۱) طوطي هسې هم شين رنګ لري خو د "شين" لفظ ورسره د تاکيد د پاره زيات استعمالېږي (هسې د نورو رنګونو طوطيان هم شته خو شنه طوطيان ډېر عام دي). (۲) د (نارينه ؤ) په نومونو کښې هم استعمالېږي.

**طوطۍ** :- (طو+طَ+ی) (اس ـ مو) د طوطي تانيث دے. (۱) د ځينو زنانه ؤ د نوم په طور استعمالېږي. (۲) سرنا. مشهور ساز دے.

**طوطيا** :- (طو+ط+يا) (ف ـ اس ـ مذ)(۱) يو نيله توته. (۲) يو خاص قسم کانړے چې خلق ئې مېده وړۀ کړي او د رنجو په طورئې استعمالوي

**طوع** :- (طَو+ع) (ع ـ اس ـ مذ)(۱) رغبت. هسه. (۲) اِطاعت. فرمانبرداي

**طوعاً** :- (+عَ+نَ) (ع ـ تف)(۱) په رغبت سره. په خواهش. اختيار سره.

کـه تصديق د مـومن ښۀ محکم پـه ځاے وي
ايمـــان درومـــي پـــه طـــوعاً انکار د ژبې

(۲) د اطاعت او فرمانبردارۍ په طور (عموماً "کرهاً" سره يو ځاے راځي).

**ــــ کرهاً**:- (وَ+کَ+ر+هَ+ن) (ع تر ـ تف) که په رضا او خوشحالۍ وي او که په مجبورۍ او زور. (د کرهاً معنیٰ مجبوري او زبردستي ده). يعني که زړۀ غواړي او که نۀ غواړي. که په رضا وي او که په مجبورۍ. خواه مخواه

**طوغ** :- (طَو+غ) (ت ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) جنډه. عَلَم. نشان.

**طوف** :- (طَو+ف) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه)(۱) د څۀ څيز نه ګېر چاپېره ګرځېدنه ګېرچاپېره چکر لګونه. طواف. (۲) د کعبې نه چاپېره ګرځېدنه. (۳) خپلو ښځو له وار په وار تلنه.

**طوفان** :- (طُو+فا+ن)(ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) (۱) راګېرونے يا غرقوونکے او (د اوبو) په سمندر کښې اوچتې چپې او غورځنګونه.(۲) تېز باران چې سيلۍ هم ورسره وي. (۳) ډېره تېزه سيلۍ. (۴) فساد. فتنه.

**ــــ برپا کول**:- (وـــــ طوفان پُورته کول)

**ــــ پورته کول**:- (۱) فتنه او فساد پورته کول. (۲) په خلقو کښې فاقلاري پيدا کول. (۳) په ژړا فرياد ملک په مخه اخېستل.

**ــــ راتلل**:- (۱) ډېره تېزه تنده سيلۍ راتلل. (۲) په سمندر کښې لوړې چپې او غورځنګونه پيدا کېدل.(۳) تېز باد باران راښکلے کېدل. (۴) خوفناک او خطرناک حالات راتلل.

**ــــ راولاړېدل**:- (وـــــــ طوفان راتلل)

**ــــ سازېدل**:- تباهي راتلل. هلاکېدل. بربادي راتلل.

دا طوفان چې په مغلو باندې ساز شو
پـه کشتن په اولجو هېڅ مه کړه نظر (خوشحال)

**ــــ کېدل**:- (۱) د تباهۍ سبب جوړېدل.

کـال پـه کال امرايان دي چې پرېوځي
چې طوفان شولې لښکرې کوم ئې شمار (خوشحال)

(۳) سېلاب جوړېدل.

نـه کـا نـوح د يار د خيال ورځنې وېره
که مې اوښکې په چشميانو کښې طوفان شي (حميد)

**دريګ ــــ**:- (دَ+رې+ګ) (عف پ تر ، اس ـ مذ) د شګو طوفان. د شګو سيلۍ.

**د نُوح ــــ**:- (دَ +نُو+ح) (اس ـ مو ، مذ) هغه لوے طوفان (د اوبو) چې د حضرت نوح عليه السلام په وخت کښې د هغه د قوم د پاره د عذاب په طور راغلے وۀ او ټول اولس په کښې غرق شوے وۀ. صرف حضرت نوح عليه السلام او د هغه خپل خپلوان او ملګري او د ځناورو او مرغانو يو څو جوړې د هغې کشتۍ په وجه ترې بچ شوي وو کومه چې حضرت نوح عليه السلام د طوفان د راتلونه اګاهو جوړه کړې وه.

**د هېجاناتو ــــ**:- (دَ +هې+جا+نا+تو) ډېر زيات جذبات راولاړېدل.

**په ــــ کښې ګېرېدل**:- (۱) په سخته تېزه سيلۍ يا جم جقړ کښې راګېرېدل. (۲) (د هوائي جهاز) په ډېره سيلۍ کښې راګېر بدل. (۳) (د سمندري جهاز) د سمندر په لوړو لوړو چپو او غورځنګونو کښې راپسارېدل.

**د ــــ نه اګاهو**:- (نَ+اَ+ګَ+هُو) (عپ تر ـ اس ظ)د طوفان نوح عليه السلام نه اول. د ډېر پخواني وخت د اندازې دپاره استعمالېږي.

**طوفاني** :- (طُو+فا+ني) (عف تر ـ اس ـ مو)(۱) طوفان سره تعلق لرونکے. طوفان ته منسوب. (۲) د طوفان په شان په تېزۍ سره او ناڅاپه پېښېدونکے.

**ــــ چپه**:- (چَ+پَ) (عپ تر - اس - مو ، ج - پې)(۱) د طوفان په شان لوړه او تېزه چپه - (۲) مجازاً ناڅاپه پېښېدونکې او خطرناکه واقعه یا پېښه

**ــــ دوره**:- (دَو+رَ) (عف تر - اس - مو ، ج - رې) هغه دوره (د مختلفو ځایونو کتنه) چې ډېر زر زر د یو ځای نه بل ځای ته کولې شي -

**طوق** :- (طَو+ق) (ع - اس - مذ ، ج - ونه)(۱) په غاړه کښې د تړلو څیز - غاړه بند ګلوبند - (۲) حلقه - هر غونډ څیز چې د حلقې یا د کړۍ په شانتې وي -(۳) اُوږۍ - د غاړې یو کالی - (۴) هغه کرښه کومه چې د بعضو مرغو مارغانو په غاړه کښې قدرتي جوړه شوې وي لکه طوطي - ګوګوشتکه وغېره - (۵) یوه درَنه حلقه چې د مجرمانو مرۍ ته به اچولې شوه چې سر به ئې ترې نۀ شو پورته کولې - (۶) په خوا د غلامۍ په دور کښې د غلامانو یوه نخښه وه چې د وسپنې وغېره به ئې د هغه په غاړه کښې اچولې وه -

**ــــ دار**:- (دا+ر) (عف تر - صف مذ ، مو - ه) طوق لرونکې - طوق واله لکه طوقدار مارغان -

**ــــ د سپوږمۍ**:- (دَ ،س+پو+ګ/ژ+مَ+ۍ) (عپ تر - اس - مذ)د سپوږمۍ نه چاپېره د رڼا حلقه یا دائره - هاله -

**د غاړې ــــ**:- (دَ+غا+ړې) (عپ تر - اس - مذ ، ج - ونه) په غاړه کښې د اچولو کړۍ یا حلقه پابندۍ -

بې له عشقه همګي د غاړې طوق دي
که ما لــــونه که اولاد دے که ازواج (خواجه محمد)

**ــــ د غلامۍ په غاړه کول**:- د چا غلامي قبلول یا څوک خپل غلام کول -

**ــــ لرې کول ، اباسل**:- د غلامۍ نه ځان ازادول - (په دې کښې د "غلامۍ" لفظ مخدوف دے) -

**ــــ ورپه غاړه کول**:- د چا په غاړه کښې (د غلامۍ وغېره) حلقه اچول-

**د غلامۍ ــــ**:- (دَ ، +غُ+لا+مَ+ۍ) (عپ تر - اس - مذ) د غلامۍ حلقه - هغه حلقه شان چې پخوا به ئې د غلامانو په غاړه کښې اچوله - غلامي -

**ــــ د لعنت**:- (لَ(ع)+نَ+ت) د لعنت حلقه مراد ترې لعنت دے -

**د لعنت ــــ** په غاړه کول:- د لعنت حلقه یا اوږۍ په غاړه کښې اچول - مراد ترې لعنت په خپله غاړه اخستل - ځان لعنتي کول - مجازاً چې ډېر زیات بد او د لعنت وړ کار کول-

**طول** :- (طُو+ل) (ع - اس - مذ) (۱) اوږدوالے - (۲) اوږد - دراز -

د شهۍ زلفو مختولو سر هوا پرېشانو ، طولو (خوشحال)

**ــــ او عرض**:- (اَ+ؤ+عَ+ر+ض) (عپ تر - اس - مذ) اوږدوالے او پلن والے -

دتا د حسن پایاب نشته طول و عرض
چې تېر شوے تر سما دے هم تر ارض (خواجه محمد)

**ــــ بلد**:- (بَ+ل+د) (عف تر - اس - مذ ، ج - ونه) هغه درې سوه او شپېتۀ فرضي خطونه چې د زمکې په مخ د قطب (شمال) نه د نیل سره پورې راښکلې شوي دي - په دې اولنۍ د صفر درجې خط نصف النهر (د "انګلینډ د ګرین وچ" ښار سره تېرېږي نو فرضي) خطونه ددې نه نمر خاتۀ او نمر پریواتۀ طرف ته شمېرلے کېږي چې طول بلد غربي او طول بلد شرقي نومېږي - د طول بلد خطونه د وخت په معلومولو کښې پکارولے شي او دا خطونه او ورسره د عرض بلد خطونه د زمکې په مخ د یو ښار یا ځای معلومولو د پاره پکارولے شي -

**ــــ نیول**:- (۱) اوږېدل - درازه کېدل - (۲) خبره یا معامله د ختمېدو په ځای نوره غزېدل او خورېدل -

**ــــ ورکول**:- اوږدول - اوږدوالے زیاتول - غزول خبره وغېره اوږدول - معامله د خلاصېدو په ځای نوره خرابول او اوږدول -

**طولاً** :- (طُو+لَ+ن) (ع تر - تف) د اوږدوالي په لحاظ سره - د اوږد والي د طرفه - په اږدوالي -

**طولاني** :- (طُو+لا+ني) (عف تر - صف)(۱) طول سره تعلق لرونکے - اوږدوالي ته منسوب -(۲) اوږد -

مرګ لکه یو باز دے په هوا وهي کوتره
فهم فکر وکړه چې د بلبني طولاني دي (خوشحال)

طولٰی :- (طُو+لا (ع - صف) پوره - کامل - پوره اوږدوالي والا (عموماً یدِ سره یو ځای راځي) -

**ید ــــ**:- (يَ+دِ) (عف تر - اس مذکر) ډېر اوږد لاس - مجازاً په څۀ کار هنر کښې ډېر مهارت یا کمال (لرنه) -

**طومار** :- (طُو+ما+ر) (ع - اس - مذ ، جو - ونه)(۱) خط - نامه - (۲) کتاب - صحیفه - (۳) اوږد خط یا تحریر - (په خوا به خطونه او چیټهۍ و وغېره په غونډ شکل کښې نغښتي کېدے او نلکۍ غونډې به ترې جوړولې شوې مجازاً اوږد بیان - د دروغو او مبالغې نه ډک تحریر -

دا طور مار څۀ هسې نۀ دے چې تمام شي
غــوړوې ئــــې پټوې ئــې ولے نغاړې (خوشحال)

**ــــ تړل**:- وړه خبره اُوږدول - (خصوصاً د فساد او شر پېدا کول د پاره)-

**طومان** :- (طُو+ما+ن) (ت - اس - مذ ، ج - ونه)(۱) د ایران یوه پخوانۍ سکه - چې د سرو زرو وه-(۲) علاقه - (۳) سل زره یا شل زر روپۍ اصلاً "ت" سره دے - یعني تومان او تمن - په پښتو کښې هم "ت" سره درست دے او عموماً په اوله او دویمه معنٰی کښې استعمالږي - تومن هم لیکلے شي - په معنٰی کښې ئې وسعت راغلے دے او د علاقې نه علاوه قام، قبیله یا د ډله په معنٰی کښې هم استعمالېږي -

**طویل** :- (طَ+وي+ل) (ع - صف - مذ ، مو - ه)(۱) اوږد - دراز - طول واله- (۲) په علم عروض کښې د یو بحر نوم دے - په دې کښې د "فعولن مفاعلین" څلور کرته راځي - (د عربۍ په شاعرۍ کښې ډېر استعمالېږي) -

**ــــ العمر**:- (لُ+ل)عُو/عُ+م+ر) (ع تر - صف) لوے قامت واله - دنګ - لوړ -

**ــــ المدت**:- (لُ+ل)+مُ+د+دَ+ت) (ع - تر - صف) د اوږد میعاد - لوے میعاد واله -

**ــــ المیعاد**:- (لُ+ل)مي+عا+د) (ع--------------- طویل المدت)

**طوېله** :- (طُ+وې+لَ) (ع - اس - مو ، ج - لے) طبېله - د اسونو د ساتنې ځای - (اصطبل) (اصلاً معروفه "ي" سره وۀ- په فارسۍ کښې اردو او پښتو کښې مجهولې "ے" سره وئیلے کېږي او اصلاً هغې اوږد پړي ته وائي په کوم چې د اسونو پښې تړلې شي) -

**طهارت** :- (طَ+ها+رَ+ت) (ع - اس - مذ)(۱) پاکي - پاکیزګي - سُتره والے - سپېځلتیا - (۲) اُودس - غسل - لانبل -

**طهر** :- (طُ+ه+ر) (ع - اس - مذ) پاکیزګي - پاک کېدنه - خصوصاً د حېض نه پاک کېدنه - د حېض د ورځو نه علاوه پاکې ورځې -

**طه** :- (طا+ها) (اس مع)(۱) د قرآن شریف د یو سورت نوم - (۲) رسول صلعم ترې مراد دے -

**طهران** :- (ط+ه+را+ن) (اس مع) د ایران دارالحکومت - (اوس عموماً "ت" سره تهراَن لیکلے کېږي) -

**طهره** :- (طُ+ه+رَ) (اس مع) افسانوي نوم - چې دطهره او د زهره د مینې په قیصه کښې راځي-

د طهـــره د زهـــره مینه طــــاري نۀ وه
خوش ګفتار ئې په خاطر کښې طراوت ږدي (حافظ)

**طهور** :- (طَ+هُو+ر) (ع - اس - مذ)(۱) پاک کوونکے - (۲) ډېر پاک - ببخي پاک -

**شراب ـــــ**:۔ (شَ+را+ب) (عف تر ۔ اس ۔ جم) (۱) پاک شراب ۔ پاکیزه شراب ۔ د جنت شراب چې پاک او حلال به وي ۔
که ئې حور قصور شراب طهور یادېږي
دغــه واړه به حاصل د رب په داد شي (حافظ)
(۲) مجازاً ۔ شوملې ۔ شلومبے ۔

**طے** :- (طَے) (ع ۔ صف) (۱) تاووهنه ۔ نغښتنه ۔ (۲) په عربو کښې د یمن په لور اوسېدونکے یوه طائفه چې مشهور سخي حاتم پکښې پېدا شوے وۀ ځکه ورته حاتم طائي وائي ۔

**ـــــ کول**:۔ (۱) (لاز) نغښتل ۔ مجازاً مزل کول ۔ لاز وهل ۔ لاز سرته رسول ۔ (۲) (لاز) نغښتل ۔ د ځۀ خبرې یا د معاملې فېصله کول ۔ په خپله کښې یوې رائې یا فېصلې ته رسېدل ۔

**ـــــ کېدل**:۔(۱) فاصله په تللو ختمېدل ۔ د سفر لاز سر ته رسېدل ۔(۲) فېصله کېدل ۔ جوړه راتلل ۔ پخپله کښې یوه رائې قائمېدل ۔

**طیار** :- (طَ+ي+یا+ر) (ع ۔ صف)(۱) ډېر زیات الوتونکے ۔ (۲) د حضرت جعفر رضي الله عنه لقب دے ۔ (چې دحضرت علي رضي الله عنه زوے وۀ او دواړه لاسونه په جنګ کښې غوځ شوي او شهید شوي وو ۔ دا لقب ورله حضور پاک صلعم ورکړے وۀ چې هغه په جنت کښې الوځي) ۔
(۳) مجازاً مهیا ۔ موجود (عموماً "ت" سره تیار لیکلے شي ۔ ټول الفاظ ئې د "ت" تر لاندې تېر شوي دي) ۔
د عذاب قاقت مې هېڅ نشته بخښنه مې
و درګاه سره د درغلـــم طیـــــار یم (خوشحال)

**طیاره** :- (طَ+ي+یا+رَ (اس ۔ مو ، ج ۔ رې)الوتکه ۔ هوائي جهاز ۔

**طیارې** :- (طَ+ي+یا+رې)(۱) د "طیاره" جمع ده ۔ (۲) د "طیاره" اضافي یا مجروري وغېره شکل دے۔

**طیب** :- (طِي+ب) (ع ۔ اس ۔ مذ)(۱) خوشبوي ۔ خوشبو ۔
طو طیب لُعـاب د دۀ وو
تر عسلو زیات خواږۀ وو (حافظ)
(۲) ښۀ ۔ (۳) خوش طبعي ۔ خوش مزاجي ۔

**طیّب** :- (طَ+ي+یِ+ب) (ع ۔ صف ۔ مذ ، مو ۔ ه)(۱) ښۀ ۔ د خوښې ۔ پاکیزه ۔ (۲) حلال ۔

**طیّبات** :- (طَ+ي+یِ+با+ت) (ع ۔ اس ۔ ج) د طیبه جمع ده ۔ پاک ځیزونه ۔ پاکې ښځې ۔ پاکې بیبیانې ۔

**ـــــ د طیب**:۔ (اس مع) د رسول الله صلعم د دووۀ صاحبزادګانو نومونه دي چې په وړوکوالي کښې وفات شوي وو ۔

**طیّبه** :- (طَ + ي + یِ + بَ (ع ۔ اس ۔ مع) (۱) پاک ۔ پاکیزه ۔ (۲) مدینې منّورې ته وائي ۔

**طیر** :- (طَے+ر) (ع ۔ اس ۔ مذ) الوت ۔ الوتنه ۔ الوتونکے ۔ مرغے ۔ مارغۀ ۔ (په عربۍ کښې د واحد او جمع دواړو د پاره راځي)۔

**طیران** :- (طے+را+ن) (ع ۔ اس ۔ مذ ، ج ۔ ونه) الوت ۔ پراز ۔ الوتنه ۔

**ـــــ کول**:۔ الوتل ۔ پرواز کول ۔

**د افکارو ـــــ**:۔ (د ،اَ+ف+کا+رو) (عف پ تر ۔ اس ۔ مذ) د فکر یا د خیال (شاعرانه) الوت ۔

**طیش** :- (طَے+ش) (ع ۔ اس ۔ مذ) (۱) غصه ۔ قهر ۔ خفګان ۔ تاؤ ۔ (۲) د عقل نه پاتې کېدل ۔

**ـــــ کول**:۔ غصه کول ۔ تاؤ کول ۔ قهر کول ۔
عمر دې ډېر شي له جم د عمر
په تا به وشي د مرګ طېشوته (خوشحال)

**په ـــــ کښې راتلل**:۔ په غصه کېدل ۔ په قهرېدل ۔ ډېر زیات سختېدل۔

**طیف** :- (طِي+ف) (ع ۔ اس ۔ مذ) په خواب یا په ویښه د ځۀ ځیز خیال راپېدا کېدل ۔

**طیفي** :- (طے+في) (عف تر ۔ صف) طیف سره تعلق لرونکے ۔

**طیلسان** :- (طےَ+لَ+سا+ن) (ع ۔ اس ۔ مذ) (۱) یو قسم څادر دے چې قاضیان او خطیبان ئې اغوندي ۔(۲) هغه څادر چې عرب ئې په اوږه اچوي

**طین** :- (طي+ن) (ع ۔ اس ۔ مذ) خاوره ۔ نمجنه خاوره ۔ ختهه ۔ (چې بني ادم ترې په اول وار پېدا کړے شوے وۀ) ۔

**طینت** :- (طي+ن+ت) (ع ۔ اس ۔ مذ ، ج ۔ ونه) خټه ۔ پېدائش ۔ خلقت ۔ سرشت ۔ فطرت ۔ اصل خوبۍ خصلت ۔

**بد ـــــ**:۔ (بَ+د) (عف تر ۔ صف) بدخویه ۔ خراب خویي واله ۔ خراب خصلت واله

**نېک ـــــ**:۔ (نے+ک) (عف تر ۔ صف) د ښۀ خوۍ خاوند ۔ ښۀ خوۍ واله ۔ ښۀ خصلت لرونکے ۔

# ظ

**ظ** :- (ظ+وې) (اس ـ مو ، ج ـ ګانې) د پښتو د الفباء وؤیشتم توری دی ـ د عربۍ وؤلسم ، د فارسۍ شلم او د اردو درویشتم توری دی ـ د زیاتي وضاحت د پاره دې توري ته معجمه یا منقوطه (عموماً نقطې والا) ظا هم وائي ـ اصلاً دعربۍ اواز دی ـ چې غیر عرب ئې صحیح تلفظ نه شي کولی ـ په پښتو کښې ئې لکه د ځینو نورو ژبو تلفظ د "ز" په شان کولی شي ـ په پښتو کښې صرف هغو الفاظو کښې راځي کوم چې اصلاً عربي دي ـ صحیح تلفظ کښې د اصل اواز (ظ) د شونډو د غونډولو په وجه یو سپک شان د "واو" غوندې اواز هم پیدا کیږي ـ ځکه په پښتو کښې ئې نوم (ظ+وې) دی په فارسۍ عربۍ کښې ورته "ضاء" وائي ـ د جمل په حساب کښې ددې توري قیمت نهه سوه (۹۰۰) دی ـ د ظوې د اواز علامت یعني (ظ) ـ

**ظالم**:- (ظا+ل+م) (ع ـ اس/ص ـ مز ، ج ـ ان ، مو ـ ه)(۱) ظلم کوونکی ـ جور ، ستم کوونکی ـ (۲) د چا حق وهونکی ـ بې انصافه ـ بې انصافي کوونکی ـ زیاتی کوونکی ـ(۳) (شاعري) معشوقه ـ محبوب ـ

**ظالمانه**:- (ظا+ل+ما+نَ) (ف تر ـ صف) د ظلم په انداز کښې ـ د بې انصافۍ په طور لکه ظالمانه سلوک کول ـ

**ظالمه** :- (ظا+ل+مَ) (اس ـ مو ، ج ـ انې)(۱) د ظالم تانیث دی ـ (۲)د "ظالم" منادائي شکل ـ اې ظالمه!

**ظالمي** :- (ظا+ل+مي) (عپ تر ـ اس) ظلم ـ جور ـ ستم ـ

ستا د تورو زلفو ظالمــي څهٔ پټه نهٔ ده
مست چې زوره ور وي ظالمي بر ملا کا (خوشحال)

**ظاهر** :- (ظا+ه+ر) (ع ـ صف ـ مذ ، مو ـ ه)(۱) څرګند ـ ښکاره ـ اوڅار ـ (د باطن ضد دی) لکه شرع ظاهر ګوري ـ (متل)(۲) پرانستې ـ په ډاګه (۳) د الله پاک یو صفاتي نوم ـ (۴) د نارینه ؤ په نومونو کښې هم راځي ـ

**ـــــ او باطن**:- (اَ+و+با+ط+ن) (عف تر ـ مذ) ښکاره او پټ ـ څرګند او پناه ـ

په ظاهر باطن تر واړو مقدم ئې
بیـا پرتـا د انبیاؤ خاتمـــه ده (خواجه محمد)

**ـــــ بین**:- (بي+ن) (عف تر ـ صف ، مذ ، مو ـ ه)(۱) په ظاهر نظر لرونکی ـ صرف څرګند (کار یا څیز وغیره) لیدونکی ـ(۲) مجازاً په ظاهره چې څهٔ لیدی شي ـ په هغې ویسا کوونکی ـ د خبرې یا د کار په پټ یا په اصل حقیقت نظر نه لرونکی ـ نظر لرونکی ـ

**ـــــ بین کیدل**ـ ظاهر حالت ته کتل ـ په ظاهري حالت یا نمائش تیر وتل ـ

**ـــــ پرست**:- (پَ+رَ+س+ت) (عف تر ـ صف ـ مذ ، مو ـ ه) ظاهري او ښکاره څیزونو یا د کارونو خوښوونکی ـ په ظاهري او څرګند څیزونو نظر لرونکی ـ دنیا پرست ـ دنیادار ـ

**ـــــ دار**:- (دا+ر) (عف تر ـ صف مذ ، مو ـ ه)(۱) نمود کوونکی ـ لباسي ـ ظاهري تعلق ښکل ـ (۲) منافق ـ ریا کاري ـ

**ـــــ داري**:- (دا+ري) (عف تر ـ اس ـ مو) (۱) نمُود ـ لباس (کوونه) ـ تشه ښوونه ـ نمائش ـ (۲) داسې خبرې یا عمل چې د زړهٔ صدق ورسره نهٔ وي ـ ظاهر شړنه ـ منافقت ـ ریا کاري ـ

**ـــــ کول**:- (و-------- ظاهرؤل)

**ـــــ کیدل**:- (و----- ظاهریدل)

**ـــــ لباس**:- په ظاهري نمائش ـ ظاهري شوشا ـ

په ظاهري لباس غلط د سړي مه شي
مبنځ ئـــې ګوره له چغزیه له متاکه (رحمان بابا)

**ـــــ والي**:- (وا+لې) (عپ تر ـ اس ـ مذ) ظاهري حالت ـ ښکاره والی ـ

**په ـــــ تلل**:- په ظاهري نمود تیر وتل ـ په څرګند شکل وغیره اعتبار کول ـ

**ظاهراً** :- (ظا+ه+رَ+ن) (عف تر ـ صف)په ظاهره ـ په ظاهر کښې ـ په ښکاره ـ په څرګنده ـ

**ظاهرول**:- (ظا+ه+رَ+ؤ+ل) (مص مت) (۱) څرګندول ـ ښکاره کول ـ برسیره کول ـ په ډاګه کول ـ(۲) شرح یا وضاحت کول ـ (۳) (راز وغیره) فاش کول ـ افشا کول (راز) څرنګدول ـ (۴) یو څیز پـه داسې رنګ ښکاره کول چې حقیقت ئې بل شان وي ـ

**ظاهرونه**:- (ظا+ه+رَ+ؤ+نَ) (حمص) څرګندؤنه ـ ښکار کوونه ـ افشا کوونه ـ په ډاګه کوونه ـ

**ظاهروونکی** :- (ظا+ه+رَ+وُو+ن+کَی) (اس فا ـ ج ـ کي) څرګندونکی ـ ښکاره کوونکی ـ افشاء کوونکی ـ

**په ـــــ**:- (تف) په ښکره ـ په څرګنده ـ د بهر نه ـ

**ظاهره ده**:- (جمله) ښکاره ده ـ څرګنده ده ـ (یعني هر چاته معلومه ده ـ د بیان حاجت ئې نشته)

**ظاهري**:- (ظا+ه+ري) (عف تر ـ صف)(۱) څرګند ـ لکه څنګه چې د بهر نه څرګندیږي ـ (۲) د تشې ښوونې ، د تش نمائش یا د نمود (د باطني ضد دی) ـ

**ـــــ بڼه**:- (بَ+ن+ړَ) (فپ تر ـ اس ـ مو ، ج ـ ړې) ظاهري رنګ ـ کوم رنګ ـ (چې دڅهٔ څیز) په څرګنده ښکاري ـ

**ـــــ عالم**:- (عا+لَ+م) (فپ تر ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) څرګند عالم ـ هغه عالم یا دنیا چې په ظاهره ښکاري ـ

**ظاهریدل**:- (ظا+ه+ري+د+ل) (مص) څرګندیدل ـ ښکاره کیدل ـ برسیره کیدل ـ په ډاګه کیدل ـ

**ظاهریدنه**:- (ظا+ه+ري+دې+د+نَ) (حمص) څرګندیدنه ـ ښکاره کیدنه ـ

**ظاهریدونکی** :- (ظَا+ه+ري+دُو+ن+کی)(اس فا ـ ج ـ کي)څرګندیدونکی ـ ښکاره کیدونکی ـ افشاء کیدونکی ـ

**ظاهربده**:- (ظا+ه+رې+د) (حمص) ښکاره شي ـ ښکارېدنه ـ
**ظرافت**:- (ظَ+را+فَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه)(۱) ټوقې ـ ټقالې ـ خوش طبعي ـ خندا ـ مسخرګي ـ په ادب په ظرافت په رموز پوهې (۲) هوښيارتيا ـ ځيرکي ـ عقلمندي ـ
ـــــ **اميز**:- (ا+مي+ز) (عف تر ـ صف ـ مذ ، مو ـ ه) ظرافت سره ګډ ـ داسې خبرې وغېره چې د ټوقو ټقالو نه انداز کښې وي ـ
**ظرافتاً**:- (ظ+را+فَ+تَ+ن) (ع ـ تف) د ظرافت په طور ـ د ټوقو خندا په طور ـ د مذاقي او تمسخر په انداز ـ د خوش طبعي نه ـ د ټوقو نه ـ
**ظرف**:- (ظَ+ر+ف) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ وجه)(۱) لوښے ـ هغه څيز چې بل څيز په کښې ځايولے شي ـ کنډول ـ جام ـ خم کټوی وغېره ـ(۲) د زړهٔ وسعت ـ حوصله ـ د برداشت وسعت ـ (۳) (صرف و نحو) هغه اسم ذات چې د وخت يا د ځاے معنیٰ لري ـ
ـــــ **او مظروف**:ـ (اَ+و+مَ+ظ+رُو+ف) (عپ تر ـ اس)لوښے او په لوښي کښې چې کوم څيز پروت وي ـ
ـــــ **زمان**:ـ (زَ+ما+ن) (عف تر ـ اس ـ مذ) (صرف و نحو) هغه اسم چې زمانه يا وخت ترې څرګندېږي لکه ورځ شپه ـ کال غرمه وغېره ـ
ـــــ **مکان**:ـ (مَ+کا+ن) (عف تر ـ اس) (صرف و نحو) هغه اسم چې د ځاے ځائيګي معنیٰ ورکوي ـ لکه کور ـ باغ ـ ملک ـ وغېره ـ
**کم** ـــــ:ـ (کَ+م) (عف تر ـ صف ، مذ ، مو ـ ه) د وړوکي لوښي خاوند ـ د وړوکي زړهٔ خاوند ـ مجازاً کم حوصله ـ کمينه ـ
**ظرفا** :- (ظُ+رَ+فا) (ع ـ اس ـ ج) د ظريف جمع ـ ټوقماران ـ ټقاليان ـ ټوقې وشتې کوونکي ـ
**ظرفي** :- (ظَ+ر+في) (عف تر ـ صف) ظرف سره تعلق لرونکے طرف ته منسوب ـ لکه طرفي مرکب ـ
**ظرفيت** :- (ظَ+ر+في+يَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه)(۱) په لوښي کښې د څهٔ څيز د ځايونې خصوصيت ـ ګنجائش ـ لکه دا لوښے د شلو ليټرو ظرفيت لري ـ (۲) مجازاً همت ـ حوصله ـ زړهٔ ورتيا ـ د زړه لوے والے ـ (يا تنګ والے) ـ
**ظروف**:- (ظُ+رُو+ف) (ع ـ اس ـ ج)د "ظرف" جمع ده ـ (وـــــــ ظرف۱)
**ظريف**:- (ظَ+رې+ف) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ان ، مو ـ ه) (۱) ټوقمـــار ـ ټـــوقي ـ ټقالي کوونکے ـ ټوکمار ـ ټوکې کوونکے ـ مسخره ـ(۲) خوش طبع ـ (۳) هوښيار ـ زيرک ـ (۴) د سړو په نومونو کښې هم استعمالېږي ـ
ظريفان :- (ظَ+رې+فا+نَ (عف تر ـ صف) هغه خبره يا کار چې ظرافت يا ظريف سره تعلق لري ـ د ټوقو د مسخرو د ټوقو ټقالو ـ
**ظريف خېل**:- (ظَ+رې+ف+خېـل) (اس ـ مع) دا د شمک خېلو څانګه ده او شمک خېل ، عبدالله ، ايمل خېل ، بهلول زئ محسود دي ـ
**ظريـف خېـل**:- (ددغـه) (اس مـع) دا د دُړو څانګـه ده او دړ خُسـروګي ، نصرالدين ، زخاخېل ، افريدي دي ـ
**ظريـف کـور**:- (ظَ+رې+ف+کـو+ر) (اس مـع) د رحمـت کـور څانګـه ده او رحمت کور ، موسیٰ خېل ، سپاه ، بائيزي ، مهمند دي ـ
**ظريف کور**:- (ددغـه) (اس مع) دا د خاني خېلو څانګه ده او خاني خېـل ، قاسم خېل ، ترک زئ ، مهمند دي ـ
**ظفر** :- (ظَ+فَ+ر) (ع ـ اس ـ مذ)(۱) فتح ـ سوبه ـ برے ـ (۲) کاميـابي ـ (۳) د سړو په نومونو کښې راځي ـ(۴) د مغلو د اخري بادشاه بهادر شا تخلص چې پېرنګيانو په رنګون کښې قېد کړے وۀ او هم هلتـه مړ شو
ـــــ **موندل/ندل**:ـ فتح موندل ـ سوبه حاصله ول ـ بريالے کېدل ـ کاميابه کېدل
ـــــ **ياب**:ـ (يـا+ب) (عـف تـر ـ صـف ، مـذ ، مـو ـ ه) فـتح يـاب ـ بـرے موندونکے ـ بريالے سوبه ور ـ سوبمن ـ
ـــــ **يابي**:ـ (يـا+بي) (عـف تـر ـ اس ـ مـو) فـتح يـابي ـ بـرے ـ سـوبه وري ـ بريالیتوب ـ سوبمني ـ
**ظفر خېل**:- (ظَ+فَ+ر+خېل) (اس مع) دا د نانا خېلو څانګه ده او نانا خېـل ، تاپيائي ، تپي زاد ، داوړ دي ـ
**ظــل**:- (ظَ+ل) (ع ـ اس ـ مــذ) (۱) ســورے ـ ســويرے ـ سـايه ـ سـوبره (۲) مجازاً ـ پناه ـ حمايت ـ (په عربی کښې د لام شد سره وئيلے کېږي خو په پښتو (او نورو ژبو) کښې عام غوړندي سره وئيلے کېږي ـ صرف د عربی په مرکباتو کښې ئې دا شد څرګند شي) ـ
تن ئې پاک په صفت جان وۀ
ظل ئـــې هېچـــا نۀ لېدۀ (حافظ)
ـــــ **الله**:ـ (لُ+ل+لا+ه) (ع تر ـ مذ) د الله سورے ـ د بادشاه د پاره د لقب يا د احترام په طور استعمالېږي ـ خصوصاً بادشاه ته په مخاطبه کښې ـ
ـــــ **الهي**:ـ (ا+لا+هي) د خداے تعالې سورے ـ د الله سورے ـ
ـــــ **خدا**:ـ (خُ+دا) د الله سورے ـ د الله مدد ـ
ـــــ **سبحاني**:ـ (س+ُب+حا+ني) (وــــــــ ظل الله)
ـــــ **هما**:ـ (هُ+ما) (عف تر ـ اس ـ مذ) د هما مارغه سورے ـ (ددغې مارغه په حقله مشهوره ده چې په کوم سړي ددې مارغهٔ سورے و شي نو هغه بادشاه کېږي ـ هما يا هما ئې يو فرضي مارغۀ دے) ـ
**ظلال** :- (ظَ+لا+ل) (ع ـ اس ـ مذ) (۱) د ورځې سوبرے ـ (۲) سورے لرونکے ځاے ـ سبورن ـ سورن ـ
**ظلال** :- (ظ+لا+ل) (ع ـ اس ـ مذ) د ظل جمع ده ـ (ډېر) سورې ـ سويرې ـ
**ظلام** :- (ظَ+لا+م) (ع ـ اس ـ مذ)د شپې د اولنی برخې تيارهٔ ـ مطلق تيارهٔ ـ
**ظلام** :- (ظ+لا+م) (ع ـ اس ـ ج) د "ظلمت" جمع ده ـ تيارې ـ تيرې ـ
**ظَلم** :- (ظُ+ل/ل+م) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه)(۱) زياتے ـ ستم ـ جور ـ ناتار ـ تاړاک ـ (۲) ضرر رسوونه ـ نقصان يا تکليف ورکوونه ـ (۳) دچا حق وهنه ـ بې انصافي ـ زبردستي ـ
ـــــ **پرور**:ـ (پَ+ر+وَ+ر) (عف تر ـ صف ، مذ ، مو ـ ه)ظلم پالونکے ـ ظالم ـ ظلم کوونکے ـ ظلم پېشه ـ
ـــــ **پسند**:ـ (پَ+سَ+ن+د) (عف تر ـ صف ، مذ ، مـو ـ ه)ظلم خوښوونکے ـ ظالم ـ ظلم پرور ـ
ـــــ **ظلم دے**:ـ (جمله) زياتے دے ـ بې انصافي ده ـ ناحق کار يا خبره ـ
ـــــ **رسيده**:ـ (رَ+سي+دَ) (عف تر ـ صف) هغه کس چې ظلم پرې شوے وي ـ مظلوم ـ
ـــــ **شعار**:ـ (شِ+عا+ر) (عف تر ـ صف ، مذ ، مو ـ ه)هغه کس چې ظلم ئې عادت وي ـ ظلم پېشه ـ ظالم ـ
ـــــ **کار**:ـ (کا+ر) (عف تر ـ صف ، مذ ، مو ـ ه) ظلم پېشه ـ ظالم ـ لکه هغه ډېر ظلمکاره او زلنده ښځه ده ـ
ـــــ **کول**:ـ (۱) ستم کول ـ جور کول ـ تاړاک ـ يا ناتار راوستل ـ بې موجبه ضرر يا تکليف رسول ـ (۲) زياتے کول ـ د چا حق وهل ـ بې انصافي کول ـ زبردستي کول ـ
ـــــ **کېدل** ، په چا:ـ (۱) زياتے کېدل چا سره ـ بې انصافي کېدل ـ حق وهلے کېدل ـ(۲) ستم کېدل ـ جور کېدل ـ ناتار تاړاک کېدل ـ
**ظُلــم** :- (ظُ+لَ+م) (ع ـ اس ـ ج)د ظلمــت (تيــارهٔ) جمــع ده ـ عــام نــهٔ استعمالېږي ـ حافظ د قاني له ضرورته استعمال کړے دے ـ

**ظلما** :- (ظُ+ل+مَ+ن) (ع ـ تف) د ظلم په طور ـ په ظلم ـ ظلم سره بې انصافۍ سره ـ

**ظلمات** :- (ظُ+ل+ما+ت) (ع ـ اس ـ ج)(۱) د ظلمت جمع ده ـ تیارې ـ تیرې ـ تاریکۍ ـ (۲) هغه فرضي تیرې ـ تور تم ـ په کومو کښې چې د اب حیات (د ژوندانۀ د اوبو) چینه ده ـ وئیلې شي چې سکندر هلته ور رسېدلے وۀ خو دغه اوبۀ څښکل ئې په نصیب کښې نۀ وو ـ دا هم فرضي خبره ده ـ

**ظلماني** :- (ظُ+ل+ما+ني) (عف تر ـ صف) ظلمت لرونکے ـ تیارۀ لرونکے ـ ظلم ته منسوب ـ

په نوراني مهتاب رامه شي ظلماني سحابه
چې برابـر په رڼا ځم د خپل حبیب تر بابـه (حافظ)

**ظلمت** :- (ظُ+ل+مَ+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه/ات) تیارۀ ـ تاریکي ـ

**ظلمه** :- (ظُ+ل+مَ) (عـف تـر ـ اس ـ ج)(۱) د ظـالم جمـع ده ـ ظالمـان ـ (۲) ټیکس وصولوونکي خلق چې عام طور سره ظالمان ګڼلے شي ـ

**ظلمي** :- (ظُ+ل+مي) (عپ تر ـ اس ـ مذ) (۱) ظلم کوونکے ـ ظالم ـ (۲) ظلم ـ زیاتے ـ ظالمي ـ

**ظلوزي** :- (ظَ+لـو+زَ+ي) (اس مـع) دا د کوشـي څانګـه ده او کوشـي (د خجک) پیني یا پاڼې دي ـ

**ظلوم**:- (ظَ+لُو+م) (ع ـ اس ـ مذ)(۱) ډېر ظـالم ـ ډېر زیـات ظلم کـوونکے ـ (۲) د بني ادم پـه صفت پـه قـران پـاک کښې "ظلوم او جهـول" الفاظ راغلي دي ـ دلته ئې معنٰی په خپل ځان زیاتے کوونکے او جاهل ده

ظلوم جهول یم په کړو لاړو ځم
الله ته مـــې په راه راست بیا یه (خوشحال)

**ظمان** :- (ظَ+ما+ن) (ع ـ تف) تږے ـ تندې وهلې ـ

ظَ ظمان مه څه دوبینه
له جـاري روده شیرینه (حافظ)

**ظن**:- (ظَ+ن) (ع ـ اس ـ مـذ ، ج ـ ونـه) ګمـان ـ قیـاس ـ خیـال ـ وهـم ـ (پـه عربۍ کښې په نون باندې شّد دے خو په پښتو او نورو شرقي ژبـو کښې بغېر د شد نه وئیلے شي خـو د عربۍ پـه مرکبـاتو کښې دا شد بیا ښکاره شي) ـ

**ـــــ کول**:ـ (مص تر) ګومان کول ـ خیال کول ـ

**سوء ـــــ**:ـ (سُو+ئِ) (عف تر ـ اس ـ مذ) خراب ګمان ـ بدګماني ـ

**نېک ـــــ**:ـ (نې+ک) (عف تر ـ اس ـ مذ) نېک ګمان ـ ښـۀ ګمـان ـ ښـۀ خیـال ـ (د چا یا د څۀ په حقله) حسنِ ظن ـ

**ظني** :- (ظَ+ن+ني) (عف تر ـ صف) ظن سره تعلق لـرونکے ـ ګمـاني ـ خیـالي وهمي لکه نجوم محض ظني علم دے ـ

**ظنیه** :- (ظَ+ن+ني+يَ) (ع ـ صف ، مـو ـ ج ـ یې)(۱) ظنـي ګمـاني ـ (۲) پـه بحث وغېره کښې هغه مقدمه کومه چې یقین ته نژدې وي ـ

**ظواهر** :- (ظَ+وا+هِ+ر) (ع ـ اس ـ ج) د ظاهر جمع ده ـ

**ظهـار** :- (ظِ+هـا+ر) (ع ـ اس ـ مـذ) خپلـې ښـځې تـه دا وئیـل چـې "تـۀ پـه ما باندې لکه د مور ئې" (ع:اَنتِ علَي لَظهر اَمي) په عربو کښې د اسلام نه اګاهو دا ښځې ته د طلاق ورکولو یوه طریقه ده ـ (په دې حقله مسئلې فقې سره تعلق لري) ـ

**ـــــ کول**:ـ خپلې ښځې ته دا وئیل "چې ته ما د پاره لکه زما د مور ئې

**ظهر** :- (ظَ+ه+ر) (ع ـ اس ـ مذ) ملا ـ پشت ـ شا ـ

**ـــــ نویس**:ـ (نَ+وي+س) (عـف تـر ـ اس ـ مـذ ، ج ـ ان ، مـو ـ ه)هغـه کـس څوک چې د چیټۍ ، خط یا د بل کوم کاغذ په شا لیکنه کوي ـ شا لیک کوونکے ـ

**ـــــ نویسي**:ـ (نَ+وي+سي) (عف تر ـ اس ـ مو) د چیټۍ یا د بـل کـوم کاغـذ په شا لیک کوونه ـ شا لیکنه ـ

**ظهـر** :- (ظُ+ه+ر) (ع ـ اس ظر) د ورځې د زوال وخت ـ د غرمې نه پس تـه وخت ماسپښین ـ (د ماسپښین د نمونځ وخت) ـ

**ظهرانه** :- (ظُ+را+نَ) (عف تر ـ اس ـ مو ، ج ـ نې) هغه دعـوت کـوم چـې د ماسپښـین پـه وخـت ورکـولے شـي ـ د غرمـې ډوډۍ یـا د ماسپښین چائے ـ

**ظهري** :- (ظَ+ه+ري) (عف تر ـ صف) هغـه تحریر وغېره چې شا (پشت) سره تعلق لري ـ د شا ، د پشت ـ

**ـــــ جواب**:ـ (جَ+وا+ب) (عـف تـر ـ اس ـ مذ) د چیټۍ یا خط داسې جـواب چې د همدغې چیټۍ یا د خط شـاته ولیکلے شي ـ پـه شـا لیکلے ـ شالیک ـ

**ظهري** :- (ظُ+ه+ري) (عف تر ـ اس ـ صف) هغه کار وغېره کوم چې د ظُهر (ماسپښین) د وخت سره تعلق لري ـ

**ظهور** :- (ظَ+هُو+ر) (ع ـ اس ـ مذ) ظاهرېدونکے ـ څرګندېدنه ـ ښکاره کېدنه ـ

**ـــــ کېدل**:ـ (۱) ظاهرېدل ـ څرګندېدل ـ ښکاره کېـدل ـ (۲) پیدا کېـدل ـ پـه ظاهر شکل کښې راښکاره کېدل ـ

**ـــــ موندل**:ـ ښکاره کېدل ـ ظاهر کېدل ـ

**ـــــ میندل**:ـ (۱) ظاهرېدل ـ څرګندېدل ـ ښکاره کېدل ـ (۲) پیدا کېدل ـ

**په ـــــ کښې راتلل**:ـ (۱) څرګندېدل ـ ظاهرېدل ـ ښکاره کېدل ـ (۲) پیدا کېدل

**پـه ـــــ کښې راوستل**:ـ (۱) ښکاره کـول ـ څرګندول ـ (۲) پیدا کـول ـ پـه ظاهر شکل کښې ښکاره کول ـ

**ظهیر**:- (ظَ+هي+ر) (ع ـ صف ، مذ ، مو ـ ه) (۱) مددګار ـ امداد کـوونکے ـ مرستیال ملاتړ ـ حمیـاتي ـ ملګرتیـا کـوونکے ـ (۲) د فارسـۍ د یـو لوے شاعر نوم ـ

**ظهیر الدین** :- (رُو+دي+ن) (اس مع) (۱) د دین مددګار یا مرستیال ـ (۲) د مغل بادشاه بابر لقب ـ

◈◈◈

# ع

**ع :-** (عَے+نْ)-[اس-مذ-ج____ونه] د پښتو د الفبا اتۀ ویشتم توری دے- د عربی اتلسم د فارسی یویشتم او د اردو څلیریشتم توری- د زیاتي وضاحت دپاره ورته عین مهمله یا غیر منقوطه (بغیر د نقطې) عین هم وائي. اصلاً د عربی غږ دے. په پښتو (یا نورو ژبو) کښې په هغه الفاظو کښې راځي کوم چې د عربی ژبې نه پور کړې شوي دي.- د دې توري اواز صرف اهل عرب ادا کولے شي. په پښتو او نورو پوروونکو ژبو کښې د اصل (عربی) د تلفظ نه لږ بدل اواز سره ادا کولے شي. په پښتو کښې د دې غږ د سپك الف او د اصل عین ترمینځه دے. یعنې نۀ خو صاف د الف اواز دے او نۀ د اصل عین اواز- (اَن پړهـ او کلي وال خلق ئې الف ته زیات ورته ادا کوي) البته مذهبي علماء ځنې وخت د عربو اصل اواز شان ئې دا ادا کولو کوښښ کوي. خو دا هسې تکلف ښکاري) اصلاً دا حلقي غږیز (Voiced) اواز دے. او د حلقي نورو غږونو (یعنې د الف، خ) نه هم د دې مخرج شاته دے. په ځینو موقعو کښې الف سره بدلیږي. دجمل په حساب کښې ددې توري قیمت اویا (۷۰) دے.

**ع یاء :-** (د علیه السلام مخفف علامت دے. یعنی "په هغو دې سلام وي" دا پیغمبرانو د نومونو نه وروستو احتراماً وئیلے او لیکلے شي- د ډېر احترام د څرګندونې دپاره د حضرت علیؓ او د حضرت فاطمهؓ په اولاد کښې د امامانو د نومونو نه وروستو هم- خصوصاً د شیعه ګانو په لیکونو کښې راوړے شي.

**ع :-** (علامت) دا د "عیسوي" مخفف دے، چې د عیسوي سن د شمېر نه وروستو لیکلے شي- دا عموماً په نیم شکل کښې یعنې "ء" لیکلے شي- لکه ۱۹۸۲ء په نوي تحریرونو کښې د (سه) نخښه نۀ ورکړے کیږي- یعنې ۱۹۸۲ء لیکلے شي.

**ع ا :-** (عے+نْ-اَ-لِ-فْ)-(مخفـل)- دا د (علیجاه اخلاص مند) مخفف (د سرتورے) دے، چې په افغانستان کښې یو لقب وۀ.

**عابد :-** (عا+بِ+دْ)-[ع-اس-مذ-ج-ان)- عبادت کوونکے- عبادت ګذار پرستش کوونکے- پرهېزګار.

عبادت لـه عزارائیلـه عداوت دے
د عابد رکوع سجود حاصل جهاد شي (حافظ)

**عابدانه :-** (عا+بِ+دا+نَ)-[صف]- عابدانو ته منسوب- د عابدانو په شان د عبادت کوونکو په رنګ کښې.

**عابده :-** (عا+ب+دَ)-[اس-مؤ-ج-دې)- (۱) د "عابد" تانیث دے (و__عابد)- (۲) د مسلمانانو ښځو په نومونو کښې استعمالیږي

**عابدین :-** (عا+ب+دِی+نْ)-[ع-اس-ج]- د "عابد" عربي جمع ده.

**عابر :-** (عا+بِ+رْ)-[ع-اس-مذ-ج-ان/ ین-مؤ-ه]- عبور کوونکے- پورې کوونکے- لاروے- رهګذر.

**عاتق :-** (عا+ت+قْ)-[ع-اس-مذ-ج-ان)- (۱) زوړ- د زړې زمانې. (۲) ازادوونکے. (۳) پېغله- هغه ښځه چې تر زاړۀ عمره وادۀ ؤ نۀ کړي - په پښتو کښې د نرید تانیث دپاره ورسره (ه) هم لګولے شي.

**عاتقه :-** (عا+ت+قَ)-[ع-اس-مؤ-ج-قې]- د "عاتق" تانیث دے. (۱) پېغله. (۲) هغه جینۍ چې بغیر د وادۀ نه ډېر (زوړ) عمر ته ورسي.

**عاتکه :-** (عا+ت+كَ)-[ع-اس=مع]- (۱) د عربو زنانه ؤ یو مشهور نوم دے- د حضور پاك (ص) په نیاګانو کښې د نهو ښځو نوم وو. (۲) یوه صحابیه چې د هجرت نه ئې اګاهو اسلام قبول کړے وۀ.- بې کچه ډېره ښائسته وه- ځینو صحابیانو سره ئې دیو بل نه وروستو نکاح شوې وه. (۳) د پښتنو زنانه ؤ نوم.

**عاج :-** (عا+جْ)-[ع-اس-مذ]- د هاتي د هغو غاښونو هډوکے کوم چې بهر ته راوتے وي- د هاتي غاښ- پیلغاښ.

**عاج تراش :-** (____ تَ+را+ش)-[عف تر-اس فا/ صف-مو-ه)- هغه کس چې د هاتي غاښ نه په تراشلو ښکلي ښکلي واړۀ څیزونه جوړوي.

**عاجز :-** (عا+جِ+زْ)-[ع-صف-مذ-ج--ان)- (۱) پاتې راغلے- لاچاره چې هېڅ ترې نه کېږي یا نۀ شي کولے- بې وسه. (۲) غریب- خوار- مفلس. (۳) کمزورے- ناتوانه- بې وزلے.

هر علوک چې زوړ شي خپل مالک ازادي ورکه
زۀ هغـه مریے یـم زوړ، عاجز له خدمتونه (حافظ)

**عاجز کول :-** (۱) خوارول- ناداره کول- مفلس کول. (۲) د کوم کار د کولو نه پاتې راوستل. (په پښتو کښې کم کوز استعمالیږي)

**عاجز کوونکے :-** (—كَ+وُو+نْ+کے)-[عپ تر-اس فا-ج—کی]- (۱) غریب کوُونکے- خوارونکے. (۲) پاتې راوستونکے- بې وزله کوونکے.

**عاجز کېدل :-** (۱) غریب کېدل- ناداره کېدل- خوارېدل- مفلس کېدل. (۲) د کوم کار د کولو نه پاتې راتلل. (په پښتو کښې کم استعمالیږي). (۳) بې وزله کېدل- کمزورے کېدل.

**عاجز کېدنه :-** (—کې+د+نَ)-[حمص]- (۱) غریب کېدنه- ناداره کېدنه- خوارېدنه. (۲) پاتې راتلنه- بې وزله کېدنه.

**عاجز کېدونکے :-** (—کې+دُو-نْ-کَے)-[عپ تر-اس-فا-ج-کي) غریب کېدونکے- خوارېدونکے- نادار کېدونکے- بې وزله کېدونکے.

**عاجز مزاجه :-** (—م-زا-جَ)-[عف تر-صف]- هغه کس چې په طبیعت کښې ئې عاجزي وي- عاجز طبع سړے یا ښځه.

**عاجزانه** :- (عا+جِ+زا+نَ)-[عف تر-صف]- د عاجزانو په طور- د غريبانو په شان- په عاجزۍ سره- په انکسار سره.

**عاجزه** :- (عا+جِ+زَ)-[عپ-صف-مؤ-ج-زې/ زانې]- د "عاجز" تانيث.

**عاجزي** :- (عا+جِ+زِي)-[اس-مؤ]- (۱) غريبي- خواري- مفلسي. (۲) کمزوري- ناتواني.

**عاجزي کول** :- (۱) د عاجزۍ نه کار اخستل- کبر غرور نهٔ کول. (۲) (خپله عاجزي) د عاجزانو غريبانانو په شان ژوند تېرول- کم خرڅي کول- د خپل حېثيت مطابق خرڅ يا ژوند کول. (۳) منت زاري کول.

**عاجل** :- (عا+جِ+لْ)-[ع-اس/صف-مذ-ج-ان-مؤ-ه](۱) عجلت کوونکے- تادي کوونکے- تلوار کوونکے- تلوار ګرندے- جلتي کوونکے. (۲) کوم څيز چې په عجلت (تادۍ) سره (په لاس) راځي يا راشي- موجوده حاضر څيز- (کنايةً) دنيا ته هم وائي.

**عاجلاً** :- (عا+جِ+لَ+نْ)-[ع-تف]- په تادۍ سره- په عجلت سره- زر- فوري طور سره. (د "مجوده يا حاضر" په معنیٰ کښې "اجلاً" په مقابله کښې راځي)

**عاجله** :- (عا+جِ+لَ)-[ع تر-اس-مؤ]- (۱) د "عاجل" تانيث دے. (۲) د صفت په طور اسمونه سره هم راځي لکه حيات عاجله- عاجله منافع.

**عاجي** :- (عا+جِي)-[عف تر-صف]- (۱) د عاج (د آتي غاښ) سره تعلق لرونکے. (۲) د پيل غاښ (د آتي غاښ) نه جوړ شوے څيز.

**عاد** :-(عا+دْ)-[اس مع]- د يو پخواني قوم نوم چې د عاد بن سام بن نوح د نسل نهٔ وو. ډېر زورور لوړ، ډنګ خلک وو- خو ډېر متکبره او نافرمانه وو- حضرت هود عليه السلام ددوي د هدايت دپاره مقرر شوے وهٔ. خو دوي د هغه نصحيت ونه منهٔ اخر هلاک کړے شول- قران پاک کښې ئې ذکر راغلے دے.

په باد ورک چې قوم د عاد شهٔ
هود نګاه د خدا ے په داد شهٔ (حافظ)

**عاد شداد** :- (شداد د عاد د قوم يو مشهور بادشاه تېر شوے دے. هغهٔ د جنت په نمونه يو باغ جوړ کړے وهٔ او د خداي دعوىٰ ئې کړې وه.

ده مکاره پت ئې نشته له هېڅ ياره
په ياري ئې پښېماني د عاد شداد شي (حافظ)

**عاد** :- (عا+دْ)-[ع-اس-مذ]- هغه عدد کوم چې په يو بل عدد باندې پوره پوره تقسيم شي.

**عاد اعظم** :- (ـــأ+عْ+ظَ+مْ)-[ع تر-اس-مذ]- هغه د لوے نه لوے عدد کوم چې د نورو دوو يا د دوو نه زياتو عددونو باندې پوره پوره تقسيم شي.

**عادات** :- (عا+دا+تْ)-[ع-اس-ج]- د (عادت) جمع ده- عادتونه- خصلتونه- غوني- خويونه.

**عادت**:- (عا+دَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج- عادتونه]- (۱) خوي - خصلت- طبيعت- غونې.

ما هغه سرے شمارلے دے په ورکو!
چې په خوي کښې بې وفا عادت په سپکو (خوشحال)

(۲) رسم- روج- قاعده- لار.

**عادت بودل** :- (۱) خوی خصلت بودل- معمول بودل. لکه: دروغ وئيل د هغهٔ عادت دے. (۲) اموخته بودل لکه: دا سپے دلته عادت دے.

**عادت تلل** :- (عادت نهٔ پاتې کېدل- خوي خصلت بدلېدل. هرڅهٔ برو (ځي) عادت نه برو (ځي) (متل)

علت لاړ شي عادت نهٔ ځي د سړي نه
خدا ے دې نهٔ کاندي په بده چاره څوک (رحمٰن بابا)

**عادت خرابول** :- (۱) په خرابو چارو عادتول- بدو خبرو ته اړول. (۲) د څهٔ خبرې يا د کار عادت په چا کښې پيدا کول.

**عادت زده کول** :- (څهٔ نوے خوي اختيارول- په څهٔ نوي کار عادت کېدل- د بل چانه د څهٔ عمل عادت اخېستل.

**عادت کول** :- (۱) عادت ورکول- په څهٔ کار يا عمل اموخته کول. (۲) د خپل عادت د خوي مطابق څهٔ کار کول.

**عادت کېدل** :- (په څهٔ نوي کار اموخته کېدل. څهٔ نوے څيز په خوي خصلت کښې شاملېدل.

**عادت ګرځول** :- (په څهٔ کار خپل ځان عادتول- څهٔ کار يا عمل خپل خوي خصلت کښې شاملول- په کوم کار وغېره با قاعده عمل کول.

**عادت لرل** :- (خوي لرل- خصلت لرل- اوږد ((بودل)).

**عادت ماتول** :- (۱) د خپل عادت نه خلاف کار کول- (۲) خپل زور عادت يا خوي پرېښودل.

**عادت نيول** :- (مص تر) عادت جوړول- معمول ګرځول- عادي کېدل- عادت اخېستل.

په خندا به لب کشا غنچه د مراد کړم
که ژړا عادت په وخت د سحر نهٔ يم (حافظ)

**عادت ورکول** :- (و______ عادي کول)

**ځان عادت کول** :- (عادت نېول- په خپل ځان کښې د يو کار بيا بيا کولو خوي پيدا کول. ځان بلدول.

**دا عادت دے** :- (دا کار په معمول کښې شامل دے--- هميشه داسې کول لکه: سحر وختي پاڅېدل زما عادت دے. يا کنځل کول دهغهٔ عادت دے.

**خارق العاده** :-(خا+ر+قُ+لْ+عا+د+ه)-[ع-تر-اس-مذ]- د عام عادت يا معمول نه خلاف.

**علي العاده** :- (عَ+لَ+لْ+عا+د+ه)- و__________ عادةً.

**فوق العاده** :- (فَوْ+قُ+لْ+عا+دَ+ه)- و__________ خارق العاده.

**عادتاً** :- (عا+دَ+تَ+نْ)-[ع-تف]- د عادت مطابق- د عادت يا د خوي خصلت په وجه.

**عادتي** :- (عا+دَ+تي)-[عف تر- صفت]- (۱) عادي- هغه کس چې په څهٔ کار يا عمل عادت شوے وي. (۲) د عادت سره متعلق- عادت ته منسوب.

**عادتي توبه** :- (عا+دَ+تي+تو+بَ)-[عف تر-اس- مو-ج: توبې]- هغه توبه چې هسې عادتاً کولے شي يعني پخه نهٔ وي او بيا بيا ماتولې شي.

په عادتي توبه به خلاص له ګناهونو نهٔ شې
څو نصوحا غوندې صحي توبه سوګند ونهٔ کړې (حافظ)

**عادل** :- (عا+د+لْ)-[ع-صف-اس-مذ-ج: عادلان-مؤ: عادله]- (۱) عدل کؤونکے- انصاف کؤونکے- منصف.

د ظالم تن به په تاب د افتاب سوځي
عادلان به لاندې وي د عرض تر ظله (حافظ)

(۲) هغه سړے چې ګواهي ئې معتبره وي.

**عادلانه** :- (عا+د+لا+نَ)-[عف تر- صف]- (۱) د عدل مطابق- د انصاف سره سم- منصفانه. (۲) په منځومانه طريقه- په درميانه طريقه.

**په عادلانه ډول** :- (په عدل سره- د انصاف په طريقه).

**عادل خېل** :- (عا+د+لْ+خېل)-[اس مع]- د برې خېلو څانګه ده- برې خېل (د ګلشاهي (برنۍ شمن خېل) محسود دي.

**عادل زي** :- (عا+دُ+لْ+زَ+ي)-[اس مع]- د سارنگزئيو څانگه ده- (سارنگزي (هارون خېل)-(سناټيا) کاکړ دي.

**عادلي خېل** :- (عا+د+لي+خېل)-[اس-مع]- د مرغت خېلو څانگه ده. (مرغت خېل- بسي خېل- کمال خېل- صاحب جان اکاخېل) افريدي دي.

**عادي** :- (عا+دي)-[صف]- (۱) عادت شوے- اموخته- اُورِد- (ق) لېوے (کاکړ). (۲) د ((عاد)) قوم سره متعلق د ((عاد)) خلکو ته منسوب.

**عادي کول** :- (څۀ کار يا عمل د چا په خوي کښې شاملول- د څۀ کار يا د عمل په بيا بيا کولو اموخته کول- بلدول- عادت کول.

**عادي کېدل** :- (۱) عادت کېدل- اموخته کېدل- اوږد کېدل. (۲) د څۀ کار يا د عمل د بيا بيا کولو خوي نيول.

**په عادي طور** :- (عادةً- عادتاً- دعادت مطابق د خوي خصلت مطابق.

**غېر عادي (طور سره)** :- (د عام معمول نه خلاف- د نور کله د عمل نه برعکس.

**عاذر** :- (عا+ذِ+رْ)-[ع-اس فا صف-ج: عاذران مؤ: عاذره]- عذر کؤونکے- عذر خواه- معذرت کؤونکے- معافي غوښتونکے.

**عار** :- (عا+رْ)-[ع-اس-مذ]- شرم- ننگ.

هسې خوارو زار شوم زۀ خوشحال په عاشقۍ کښې
خپل دي کـه پردي دي، راته نۀ گـوري له عاره (خوشحال)

**عار "بودل"** :- (شرم "بودل"- د شرم يا د بې ننگۍ کار "بودل"

**عار گڼل** :- (د شرم خبره گڼل- د بې ننگۍ کار گڼل.

**عار لرل** :- (د شر خبره گڼل.

زۀ عار نۀ لرم په عشق کښې له پېغوره
بـې پـروايم د ستي پـه ځبر لـه اُوره (رحمان بابا)

**عارض** :- (عا+رِ+ضْ)-[ع-اس-مذ-ج: عارضونه]- رخسار- بارخو- پارخو- غومبورے.

**عارض** :- (عا+رِ+ضْ)-[ع-صف-مذ-مؤ: عارضه]- (۱) ملاوېدونکے- پېښېدونکے- لاحق کېدونکے. (۲) شکايت کؤونکے- انصاف غوښتونکے- عرضي کؤونکے- مُدعي.

**عارض کېدل** :- (۱) پېښېدل- لاحق کېدل- لگېدل لکه: څۀ مرض عارض کېدل. (۲) عرضي کول- عدالت له تلل.

**عارضه** :- (عا+رِ+ضَ)-[اس-مؤ-ج: عارضې]- (۱) لگېدونکې- لاحق کېدونکې. (۲) بيماري- رنځ- ناجوړتيا- مرض. (۳) پېښه- واقعه- اتفاق.

**عارضي** :- (عا+ر+ضي)-[صف]- (۱) هغه څيز چې لاحقي وي- اصل نۀ وي. (۲) لږ وخت سره متعلق- د لږ وخت- وقتي- غېر مستقل. (۳) سرسري- سرسبرن.

**په عارضي ډول** :- (د څۀ وخت دپاره- وقتي طور سره. (د مستقل ډول ضد دے)

**عارضيه** :- (عا+رِ+ضي+يَ)-[ع-صف]- د عارضي تانيث دے. وقتي طور سره پېښېدونکے، چې مستقل يا ذاتي نۀ وي لکه: عارضيه صفات.

**عارف** :- (عا+ر+فْ)-[ع-اس-م-ج: عارفان/عرفا-مؤ: عارفه]- (۱) پېژندونکے- واقف. (۲) د خداے پېژندونکے- ولي. (۳) د سړو په نومونو کښې هم راځي.

د عـارف په بخره علم لُدني دے
په اَلستُ ئې روزي شوه بې تحصيله (خوشحال)

**عارفانه** :- (عا+ر+فا+نَ)-[عف تر-صف]- د عارفانو په شان- عارفانو سره تعلق لرونکے. (عموماً د شعرونو يا د کلام د صفت په طور راځي. يعنې هغه شعرونه يا کلام چې تصوف سره تعلق لري- سوچه کلام يا د حقيقت بيان).

**عارفانه شعر** :- (عا+ر+فا+نَ+ش+رْ)

**عارفانه کلام** :- (عا+ر+فا+نَ+کَ+لا+مْ)- (و____ نوټ د "عارفانه" د لاندې).

**عارفه** :- (عا+ر+فَ)-[اس/صف-مؤ-ج: عارفې]- (۱) د عارف تانيث دے. (و_عارف (فشار په "ر" دے) (۲) د زنانهٔ د نوم په طور هم راځي. (فشار په "ف" دے).

**عاري** :- (عا+ري)-[ع-صف]- (۱) بربنډ- برمنډ- لغړ- لڅ- لوڅ. (۲) نه لرونکے- پاک- لکه فلانے د علم نه عاري دے. (۳) ساده نثر، چې پکښې سجع يا نور څۀ صنعت وغېره نۀ وي. (۴) هغه کار يا خبره چې "عار، شرم، ننگ" سره تعلق لري.

**عارياتي** :- (عا+ر+يا+تي)- و____عاريتي.

**عاريت** :- (عا+ر+یَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: عاريتونه]- غوښتنه- په غوښتلو څۀ اخستنه- پور- قرض- مستعار- (اريتي يا ايرتي) اصلاً دا لفظ د "عار" نه اخستے شوے دے، ځکه چې د چانه څۀ څيز غوښتل د عار يا د شرم خبره وي.

واړه ورکول د جهان گوره عاريت دے
غم د بېلتانۀ زما زړگيه په وصال کړه (خوشحال)

**عاريتاً** :- (عا+ر+یَ+تَ+نْ)-[ع-تف]- پور کړے- پور اخستے شوے. د لږ وخت دپاره غوښتلے شوے. مستعار.

**عاريتاً اخېستل** :- (د لږ وخت دپاره اخېستل. عارضي طور سره د لږ وخت د استعمال دپاره اخېستل څۀ څيز پورول يا قرض اخېستل

**عاريتاً غوښتل** :- (د لږ وخت دپاره غوښتل- مستعار غوښتل- قرض يا پور غوښتل.

**عاريتاً ورکول** :- (څۀ څيز د لږ وخت دپاره ورکول- مستعار ورکول- قرض يا پور ورکول.

**عاريتي** :- (عا+ري+تي)-[صف-مو]- غوښتلې شوے- په غوښته اخيستے شوے- سوالي څيز- د لږ وخت دپاره اخيستلے شوے يا پور کړے څيز- قرضي.

**عاريتي ورکول** :- (پور ورکول- د څو ورځو دپاره ورکول.

**عاريتي وېښتهٔ** :- (عا+ري+یَ+تي+وي+خ+تُ

**عاريتي وېښتان** :- (عا+ري+یَ+تي+وې+ښ+تا+نْ)-[عپ تر+اس جم]- نقلي وېښتهٔ- بناوټي وېښتهٔ- مصنوعي وېښتهٔ- انگ- وگُ]

**عازم** :- (عا+زِ+مْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج: عازمان-(مؤ: عازمه)] عزم کوونکے- قصد يا اراده کؤونکے- نيت کؤونکے- روانېدونکے- (په سفر وغېره)

**عازم کېدل** :- (۱) اراده کول- عزم کول لکه: عازمِ جنگ (يا سفر) کېدل. (۲) يو ځاے ته (په سفر) روانېدل- چرته (د څۀ مقصد دپاره) تلل.

**عاشر** :- (عا+شِ+رْ)-[ع-عدد]- (۱) لسم. (۲) په لسو کښې يو (برخه اخستونکے.

**عاشراً** :- (عا+شِ+رَ+نْ)-[ع-تف]- په لسم نمبر (دا خبره چې---).

**عاشق** :- (عا+ش+قْ)-[ع-اس صف-مذ-ج: عاشقان –عشاق –(مؤ: عاشقه)]- (۱) عشق لرونکے- مئين- مئينېدونکے- فريفته- شېدا (۲) د نارينهٔ په نومونو کښې هم راځي.

**عاشق پېتي** :- (عا+ش+قْ+پې+تي)-[عپ تر-صف]- (عدام) (و____عاشق دړې.

**عاشق توب** :- (عا+ش+قْ+تو+بْ)-[عپ تر-اس-مذ]- عاشقي- محبت

مئینتوب- مینه لرنه- عشق.

نول د تن د ځان شپول د زړۀ اشوب
یوه ځۀ بده بلا ده عـــاشق تـوب (خوشحال)

**عاشق دړے** :- (عا+ش+قْ+دَ+ړ+ے)-[عپ تر-صف]- (۱) دروغژن عاشق- د دروغو مینه څرگندونکے. (۲) هغه کس چې په هر چا مئینږي.

**عاشق کُش** :- (عا+ش+قْ+ك+شْ)-[عف تر-صف-مذ-مؤ: عاشقه کُش]- د عاشق وژونکے- د عاشق قاتل- معشوقه- محبوبه.

**عاشق کول** :- (مئینول- د چا په زړۀ کښې مینه پیدا کول.

**عاشق کېدل** :- (۱) مئینېدل- شېدا کېدل- مئین کېدل. (۲) د څۀ ځیز بې کچه ډېر خوښول- یا ئې مشتاق کېدل.

**عاشق مزاج** :- (عا+ش+قْ+م+زا+جْ)-[عف تر-صف، مذ-مؤ: عاشق مزاجه]- هغه کس چې په طبیعت کښې ئې ښائسته ؤ سره مینه اغږلې شوې وي- حُسن پرست.

**عاشق او معشوق** :- (عا+ش+قْ+(او) مَ+عْ+شُو+قْ)-[عف تر-اس-جم]- (۱) مئین او چې په چا مئین وي- محبت کوونکے او مجبوبه. (۲) دوه غمې چې په یوه گوته کښې یوځاے لگېدلې وي او رنگونه ئې مختلف وي.

**عاشقانه** :- (عا+ش+قا+نَ)-[عف تر-صف]- د عاشقانو سره تعلق لرونکے- مئینتابه- عشقي لکه عاشقانه کلام یا شعر.

**عاشقانه خط / عاشقانه چیټی** :- (ـــچي+ټ+ی)-[عپ تر-اس]- هغه خط یا چیټي (لیک) چې یو عاشق خپلې معشوقې ته لیکلے وي او پکښې ئې دخپلې مینې خبرې لیکلې وي.

**عاشقه** :- (عا+ش+قَ)-[عپ تر-اس-مؤ]- د (عاشق) تانیث دے. مئینه لکه: زلېخا په یوسف علیه السلام عاشقه وه.

**عاشقي** :- (عا+ش+قي)-[عپ تر-اس-مؤ]- مینه- عشق- د عشق کار- مئینتوب- عاشقي بده بلا ده مئین مشے.

**عاشقي کول** :- (مص تر)- مئینتوب کول- مئینېدل.

که عاشقي کړې ځان سندان کړه
پکښې پېښېږي د څټکو گذارونه (ټپه)

**عاشوره** :- (عا/آ+شُو+رَ)-[ع-اس-مؤ-ج: عاشورې]- (۱) د محرم د میاشتې لسم تاریخ- په کوم تاریخ چې حضرت امام رضي الله عنه د یزید د لښکریانو د لاسه شهید کړے شوے ؤ. (۲) پښتنائۀ د محرم میاشتې ته هم د عاشورې (آشورې) میاشت وائي. (۳) د عاشورې د میاشتې اولنۍ لس ورځې. (۴) شعرو شاعرۍ کښې د غم د ماتم ورځ (د اختر په مقابله کښې)- د عربۍ اصل لفظ "عاشوراء" دے.

**عاشوره کېدل** :- (غم راتلل- بده ورځ یا حالات راتلل.

خداے زده څۀ بازي شي
پېښنه عاشوره شي که اختر (رحمان بابا)

**عاصم** :- (عا+ص+مْ)-[ع-صف-مذ-ج: عاصمه]- (۱) بازلرونکے- بچ کوونکے- محفوظ ساتونکے- ساتندویه. (۲) پاك- د گناهونو نه بچ- معصوم. (۳) د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي.

**عاصم** :- (عا+ص+مْ)-[اس-مع]- د قران پاك په اوو قاریانو کښې د یو قاري نوم- په کوفه کښې به ئې د قرآن درس ورکاوۀ- امام ابوحنیفه هم ددۀ شاگرد وۀ. په پاك و هند کښې عموماً د دوي قرات مروج دے.

**عاصمه** :- (عا+ص+م+مَ)-[ع-اس-مؤ]- د "عاصم" مؤنث دے.
(و--- عاصم)- (۱) په اوله معنٰی کښې یعنې بچ کوونکے- محفوظ ساتونکے وغیره کښې فشار په (ص) دے. (۲) او په دویمه معنٰی یعنې پاك لمنه ښځه کښې فشار په (م) دے په هم دې تلفظ کښې د زنانه ؤ په نومونو کښې راځي. (۳) د مدینې منورې لقب.

**عاصي** :- (عا+صِي)-[ع-اس-صف-مذ-ج: عاصیان]- (۱) گناه کار- نافرمانه- مجرم- ابالي- گرم.

زۀ عاجز بنده عاصي یم
پرده پوښ مې ئې ستاره (خوشحال)

(۲) باغي- بغاوت کوونکے. (۳) ځینې خلك د خپلې عاجزۍ یا د انکسار څرگندولو دپاره خپل نوم سره د عاصي لفظ لیکي.

**عاطر** :- (عا+ط+رْ)-[ع-صف-مذ-مؤ: عاطره]- (۱) عطر واله- خوشبو واله- خوشبویه. (۲) (مجازاً)- پاکیزه- سُتره- نفیس- نېك- نېك نیته- سخي. (عموماً خاطر سره راځي یعنې خاطر- عاطر)

**عـــاطف** :- (عـــا+ط+فْ)-[ع-اس-صـــف-ج: عاطفـــان-(مـــؤ: عاطفـــه)]- (۱) مهربانه- مهرباني کوونکے- شفقت کوونکے- شفیق- خېرخواه. (۲) تیتېدونکے- ښکته کېدونکے- د چا طرف ته تیتېدونکے.

**عاطفت** :- (عا+ط+فَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: عاطفتونه/عواطف]- مهربانه- شفقت- لورنه- عذیت.

**عاطفه** :- (عا+ط+فَ)-[ع- صف- مؤ-ج: عاطفې]- (۱) د (عاطف) تانیث دے. و--- عاطف (۲) (قواعد) یوځاے کوونکے- ملاوؤنکے- خصوصاً هغه "واؤ" کوم چې دوه لفظونه یا دوه جملې یوځاے کوي- د عطف واو. (۳) تیتېدونکے.

**عاطل** :- (عا+ط+لْ)-[ع-اس فا-ج: عاطلان- مؤ: عاطله]- (۱) سست- کاهل- په کار کښې معطلي کوونکے- بېکاره- بېهوده. (۲) بېوقوف- احمق.

**عاف** :- (عا+فْ)-[ع-اس فا-ع-مذ-مؤ: عافه]- معاف کوونکے- بخښونکے.

**عـــافي** :- (عـــا+فِي)-[ع-اس فـــا ع]- معـــاف کـــوؤنکے- بخښـــونکے- معـــافي ورکوونکے.

**عافیت** :- (عا+فِي+یَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: عافیتونه]- (۱) صحت-تندرستي. (۲) امن- سلامتي-ارام- سلامتیا-روغتیا-خېریت. (۳) نېکي- ښېگړه- سعادت.

**عاق** :- (عا+قْ)-[ع-اس-صف-مذ]- د مور او پلار نافرمانه- د مور پلار نه سرکشه.

حال د خپل زوي خپل پلارو ته معلوم دے
څـــــوك به څۀ لره د عاق راته اوصاف (خوشحال)

**عاق کول** :- (نافرمانه زوي- د خپل پدرانه حقونو نه محرومه کول- د پلار زوي تعلق قطع کول- د وارثت نه محرومه کول- لعنتي کول- مردود کول.

**عاق کېدل** :- (د پلار او مور د طرفه، د نافرمانۍ په وجه د حقوقو نه، خصوصاً د وراثت دحق نه محرومه کېدل- لعنتي کېدل- مردود کېدل.

**عـاق نامه** :- (عا+قْ+نا+مَ)-[عف تر-اس-مؤ-ج: عاق نامې]- هغه کاغذ چې پکښې د مور او پلار د طرفه نافرمانه زوي د جایداد نه محروم کړے شوے وي.

**عاقبت** :- (عا+ق+بَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: عاقبتونه]- (۱) اخر- انجام- اخري انجام.

عاقبت به مې غرمه د هجر وریت کا
د آه چتـــر بـــه تر کومه په سر نیسم (علي خان)

(۲) اخرت- عقبٰی- قیامت.

**عاقبت الامر** :- (ـــ ت+لْ اَمْ+رْ)-[ع تر- تف]- د یو کار اخر- د څۀ کار انجام- د څۀ کار نتیجه.

**عاقبت اندېش :-** (ـــاَ+نْ+دې+شْ)-[عف تر-صف مذ-مؤ: اندېشـه]-د انجام فكر كوؤنكے- د راتلونكي وخت دپاره فكركوؤنكے.

**عاقبت اندېشي :-** (ـــاَ+نْ+دې+شي)-[عف تر-اس-مؤ]-د انجام فكر كؤنه- د راتلونكي وخت فكر او زبرمه كؤنه.

**عاقبت بين :-** (ـــبِي+نْ)-[عف تر-صف]-انجام ته كتونكے- دور اندېش.

**عاقبت بيني :-** (ـــبِي+نِي)-[عف تر-اس-مؤ]-عاقبت يعني انجام ته كتنه- دور اندېشي- د لرې سوچ.

**عاقبت خرابول :-** (۱) اخرت خرابول- گناه يا بد عمل كول، چې په قيامت كښې د سزا مستحق وگرځي. (۲) انجام خرابول.

**عاقبت خرابېدل :-** (۱) اخرت خرابېدل- د گناه يا د جرم په وجه د قيامت په ورځ د عذاب مستحق گرځېدل. (۲) انجام خرابېدل.

**عاقبت دې پخير شه :-** (جمله) د عائيه جمله ده- چې انجام د كار دې ښۀ شه. اخره خاتمه دې په خير شه.

**په عاقبت كښې پكار ېدل :-** (په اخرت كښې پكارېدل- په قيامت كښې په كار راتلل.

**د عاقبت توښه :-** (ـــتو+خَ/شَ) (۱) په عاقبت كښې پكارېدونكے- سازوسامان مجازاً نېك عمل- نېكي- د نېكۍ كار. (۲) د ماشوم مرېنه- وئيلے شي چې د چا وړوكے ماشوم مړ شي نو هغه به د قيامت په ورځ د مور او پلار د بخښنې سوب وگرځي.

**د عاقبت توښه دې شه :-** (جمله) د اخرت توښه دې شه- د عائيه جمله ده عموماً د ماشوم په مرېنه ئې مور او پلار ته وئيلې شي، چې دا ماشوم دې په اخرت كښې د بخښنې سوب وگرځه.

**عاقد :-** (عا+ق+دْ)-[ع-اس-فا-ج: عاقدان]-(۱) عقد كوؤنكے- تړون لرونكے. (۲) نكاح تړُونكے.

**عاقر :-** (عا+ق+رْ)-[ع-صف مذ-مؤ: عاقره]-هغه سړے يا ښځه چې بال بچ ئې نۀ كېږي. شند يا شنډه (دا لفظ اصلاً د مذكر مؤنث دواړو دپاره راځي، يعنې د تانيث دپاره ورسره (ه) نه شي لگولې خو په پښتو كښې د تانيث دپاره ورسره ((ه)) لگولے شي.

**عاقرقرحه :-** (عا+ق+رْ+قَ+رْ+حَ)-[ع-مو]-اكركره يا كركره- د يو وړوكي شان بوټي لرگے دے چې ځۀ قدرې ستغ او تريخ خوند لري. عموماً د غاښونو د درد يا صفايۍ دپاره يا د قوت باه دپاره پكارولے شي. دا ځۀ قدرې د اور اثر هم وركوي. ځكه ځينې بازيگران ئې په خوله كښې ښه وژوي بيا سور انگار په خوله كښې ونيسي.

**عاقل :-** (عا+ق+لْ)-[ع-اس-صف مذ-ج: عاقلان- مؤ: عاقلة]- عقل لرونكے- د عقل خاوند- عقلمند- هوښيار- پوهه- داشمند- خردمند.

**عاقلانه :-** (عا+ق+لا+نَ)-[عف تر-صف]-د عقل سره متعلق- عقل سره سمون خوړونكے- عقل مطابق- د هوښيار تيا لكه هغۀ يوه عاقلانه خبره وكړه.

**عاقلانه استعمال :-** (د ځۀ څيز د عقل مطابق استعمال- صحيح استعمال.

**عاقلانه كار :-** (ـــكا+رْ)-[اف تر-اس-مذ-ج:كارونه]-هغه كار چې د عقل سره سم وي- د هوښيارۍ او د پوهې كار.

**عـاقي :-** (عـا+قِي)-[عف تر-صف]-عـاق شوے- نافرمانه زوے چې پلار د خپل زوي توب نه ايستے وي.

> د بابا پـه رضا ځه جنت به مومې
> روايت مې درته وكړ عاقي تا زده (خوشحال)

**عـاكف :-** (عـا+ك+فْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج: عاكفان-مؤ: عاكفه]-اعتكاف كوونكے- گوښه نيوونكے- د جماعت په گټ كښې د عبادت دپاره گوښه نيوونكے- معتكف. (عرج=عاكفين)

**عـالم :-** (عـا+لَ+مْ)-[ع-اس-مذ-ج: عالمونه]-(۱) جهان-دنيا- نړۍ. (۲) خلك- وگړي- مخلوقات. (۳) حال- كېفيت- رنگ- احوال. (۴) طور طريقه- طرز- روش.

> عاقلانو پورې زړۀ تړلے نۀ دے
> د دنيا عالم به واړه شي راهي (خواجه محمد)

**عالم ارا :-** (ـــآ+را)-[عف تر-صف]-(۱) دنيا اراسته كوونكے- جهان ښائسته كوونكے. (۲) د زنانۀ په نومونو كښې راځي.

**عالم كېدل :-** (د علم څښتن كېدل- د زده كړې او تعليم نه پس د علم خاوند كېدل.

**عـالم گيـر :-** (ـــگي+رْ)-[عـف تـر-صـف]-(۱) جهـان نيـوونكے- دنيـا فـتح كوونكے. (۲) په درسته دنيا كښې خور شوے- درستې دنيا سره تعلق لـرونكے لكـه: عـالمگير جنگ. (۳) د دوو مغلـي بادشـاهانو نـوم. (وـــ عالمگير)

> د يوسف ؑ حُسن كه هر څو عالمگير شۀ
> ملاحت ئې جمال ستا لـه نمكـدان شي (سعيد ختك)

**عالم گير جنگ :-** (ـــجَ+نْ+گْ)-[اس مع]-هغه جنگ چې د دنيا (تقريباً) ټول قومونه او ملكونه پكښې شامل شوي وو- دويم لوے جنگ.

**عالم گيريت :-** (ـــگِي+رِي+يَ+تْ)-[عـف تـر-اس-مـذ]- درستې دنيـا سره تړون يا تعلق.

**عالم نما :-** (ـــنُ+ما)-[عف تر-صف]-ددنيا ښوونكے.

**د اخرت عالم :-** (اَ+خِ+رَ+تْ+عا+لَ+مْ)-د اخرت وخت- اخرت- عقبىٰ. (د دنيا په مقابله كښې)

**د ارواح اخـرت :-** (اَ+رْ+وا+حْ+اَ+خِ+رَ+تْ)-(۱) د روحونـو دنيـا- هغـه دنيـا يـا جهان چې روحونو سره تعلق لري. (۲) هغه زمانه چې روحونه خو پېدا كړے شوي وو، خو بدنونه نۀ وو پېدا شوي.

**د اسباب عـالم :-** (اَ+س+با+بـــ) دنيـا- جهـان- ځكـه چـې د دې د ټولو كـارونو اړه په سببونو ده. د هر كار يو سبب ضرور وي.

**د امر عالم :-** (اَ+مْ+رـــ) (د تصوف اصطلاح ده) (۱) دملائيكو عـالم. (۲) د روحونو جهان- د ارواح عالم- (هغه څيزونه چې پكښې د ټول كچ او د اندازې د حد نۀ وي)

**د بالا عالم :-** (با+لاـــ) برنے جهان- د فرښتو دنيا هغه دنيا چې پكښې عرش كرسۍ وغيره دي.

**د برزخ عالم :-** (بَ+رْ+زَ+خْ ....) د روحونو مقام چې د مرگ نه پس تر قيامت پورې به وي.

**د جبروت عالم :-** (جَ+بَ+رُو+تْـــ) (۱) د جبروت معنىٰ عظمت او جلال دے. د عظمت او جـلال عـالم يـا جهـان- د ملائيكـو دنيـا. (۲) د تصوف پـه اصطلاح كښې د خدا ے پاك د صفاتو (عظمت او جلال) مرسه.

**د جنات عالم :-** (جِ+نْ+نا+تْـــ) د جناتو يعنې د پېريانو، ديوانو دنيا

**د خواب عالم :-** (خ+وا+بْـــ) (۱) د خوب عـالم- د خوبونو دنيا- دخوب ليدلو دنيا. (۲) د خوب په حالت كښې.

**د شهود عالم :-** (شُ+هُو+دْـــ)-[عـف تـر-اس-مـذ]-د شهادت يعنې د لېدلو عالم- د صوفيانو په اصطلاح كښې هغه حالت چې په هرڅۀ كښې د الله تعالىٰ جلوه ليدے شي.

**د صغرىٰ عالم** :- (صُ+غْ+را—)

**د صغير عالم** :- (صَ+غي+ر—)-[عف تر-اس-مذ]- وړوکے عالم يا جهان- مراد ترې انسان دے، ځکه چې هرڅهٔ چې په عالم تيره (دنيا) کښې موجود دي- د هغې نظير په انسان کښې موجود دي. لکه روح بادشاه دے- عقل ئې وزير دے- حسد -بغض- قهر وغيره د ملك بدمعاشان دي او رحم- حيا زغم وغيره د ملك اشراف دي. دماغ ئې اسمان دے- دوه غوږونه، دوه سترګې، دوه سپږمې او يوه پوزه دا لکه داسمان د اوو سيارو نظير دے. هډوکي غرونه دي، وېښتهٔ سبزه ده او رګونه د نهرونو هسې دي.

**د غيب عالم** :- (غَ+ي+بْ—)-[عپ تر]- دويم جهان کوم چې د سترګو نه پټ دے.

**د کون عالم** :- (کَو+نْ+—) دا دنيا- دا جهان- د موجوداتو عالم. د کون معنٰي هست يا موجود ده. هرکله چې دا دنيا د نيست (نشت) نه په وجود کښې راوستې شوې ده. (يعنې حادثه ده چې اول ئې وجود نه لرهٔ) ځکه ورته د کون عالم وائي.

**د لاهوت عالم** :- (لا+هُو+ت+—)-[عپ تر]- (۱) د خدائے پاك د ذات عالم. (۲) د صوفيانو په خيال هغه مقام چرته چې يو سالك د "فنافي الله" درجه مومي.

**د مثال عالم** :- (م+ثا+لْ+—)-[عپ تر]- (۱) د دې دنيا په مقابله کښې يو لطيف عالم، چرته چې د دې دنيا د هرڅيز نظير موجود دے. (۲) خيالي دنيا- خوب.

**د معنىٰ عالم** :- (مَ+عْ+نا+—)-[عپ تر]- (۱) هغه عالم چې محسوس کېدے نهٔ شي. (۲) کنايةً د ملکوت عالم- يعنې د خدائے پاك د ذات او د صفاتو عالم يا مرتبه (د صوفيانو اصطلاح ده).

**د ملکوت عالم** :- (مَ+لَ+کو+تْ+—)-[عپ تر]- (۱) د فرښتو دنيا. (۲) د صوفيانو په اصطلاح کښې د معنٰي عالم.

**د ناسوت عالم** :- (نا+سُو+تْ+—)-[عپ تر]- دا دنيا- فاني عالم- د اجسامو جهان.

**د نباتاتو عالم** :- (نَ+با+تا+تو+—)-[عپ تر]- د نباتاتو يعنې د ونو بوټو ګياګانو وغيره جهان.

**د وجود عالم** :- (وُ+جُو+دْ+—)-[عپ تر]- دا دنيا- د موجوداتو جهان د هستۍ يا د ژوند عالم.

**روحاني عالم** :- (رُو+حا+ني+—)-[عف تر-اس-مذ]- هغه عالم يا دنيا چې روح سره تعلق لري- اخرت.

**سفلي عالم** :- (س+فْ+لي+—) -[عف تر-اس-مذ]- د لاندينۍ درجې دنيا- دا دنيا چې انسان پکښې اوسي.

**صوري عالم** :- (صُ+وَ+ري+—) هغه عالم چې صورت لري. محسوس کېدونکې دنيا- د شهادت عالم.

**فاني عالم** :- (فا+ني+—)-[عپ تر]- فنا کېدونکے جهان- دا دنيا (چې اخر به فنا کړے شي)

**معقول عالم** :- (م+عْ+قُو+لْ+—)-[عپ تر]- د عقل جهان- عقلي عالم- ذهني عالم.

**په عالم کښې** :- (۱) په دنيا کښې، په جهان کښې. (۲) په حالت کښې.

**په عالم کښې نشر کېدل** :- (په دنيا کښې خورېدل- مشهورېدل- (څهٔ خبر وغيره) عامو خلکو ته رسېدل.

**عالم** :- (عا+لِ+مْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج: عالمان-(مؤ عالمه)]- (۱) علم لرونکے- د علم خاوند- د پوهې څښتن- پوهان. (۲) ديني علم لرونکے- مُلا. (۳) خبرداره- خبرلرونکے.

**خدائے عالم دے** :- (جمله- خدائے پاك ته د دې خبرې وغيره علم دے خدائے پاك ترې خبرداره دے. د خپلې بې خبرۍ د ښکاره کولو دپاره وئيلے شي- يا د خپلې خبرې د صداقت د اظهار دپاره وئيلے شي.

**عالمانه** :- (عا+ل+ما+نَ)-[عف تر- صف]- د عالمانو په رنګ- د علم د خاوندانو په شان. هغه تقرير يا ليك وغيره چې علم سره تړون او مناسبت لري.

**عالم بيګ خېل** :- (عا+لْ+مْ+بي+ګْ+خېل)-[اس مع]- د ناصرو څانګه ده- غلزي دي.

**عالم خان خېل** :- (عا + لْ+مْ+خا+نْ+خېل)-[اس مع]- د مچي خېلو څانګه ده. (مچي خېل- شمتو خېل- پلي خېل- منزي- علي زي) محسود دي.

**عالم خان خېل** :- (د دغه) د ناصر خېلو څانګه ده. (ناصر خېل (حيدر خېل- تبرزاد) داوړ دي.

**عالم خان خېل** :- (ددغه) (اس-مع) –د ياخېلو څانګه. (يا خېل (ناصل) غلزي دي.

**عالم خان خېل** :- (ددغه) (اس مع)- د علي زئيو څانګه ده. (علي زي- درپه خېل- ملي زاد) داوړ دي.

**عالم خېل** :- (عا+ل+مْ+خېل)-[اس مع]- د کاني زئيو څانګه ده. (کاني زي- کتاګرام (تنا) بېټني دي.

**عالم خېل** :- (عا+لُ+مْ+خېل)-[اس مع]- د فېروزخېلو وړه څانګه ده. (فېروز خېل- تور سپر- ګلي، (ادم خېل) افريدي دي.(فېروز خېل اورکزي دي— قول زما د شاګرد ــ شاکر اورکزے)

**عالم زے** :- (عا+لْ+مْ+زَے)-[اس مع]- د خروټو څانګه ده. غلزي دي.

**عالم شېر کور** :- (عا+لُ+مْ+شې+رْ+کو+رْ)-[اس مع]- د علي خېلو څانګه ده. (علي خېل- اشوخېل(آدم خېل) افريدي دي.

**عالمګير** :- (عا+ل+مْ+ګي+ر)-[اس مع]- د مغل بادشاه اورنګ زېب نوم (۱۲۱۹-۱۷۰۷) چې د ځينو سياسي وجوهاتو له کبله ئې خپل پلار شاهجهان بادشاه په بند کښې واچاوهٔ او په تخت ئې قبضه وکړله. د دکن نه تر ترکستانه پورې ملکونه ئې فتح کړي وو. د ملك په لحاظ سره په مغلو کښې د ټولونه لوے بادشاه وهٔ. ډېر نېك پاکبازه او د شرعې پابند بادشاه وهٔ. د اکبر بادشاه خلاف دهٔ هغه ناجائز رعايتونه کوم چې اکبربادشاه هندوانو له ورکړي وو- واپس واخېستل خو بيا ئې هم هندوانو سره سلوك ډېر ښهٔ وهٔ. ډېرو مندرونو له ئې رقمونه مقرر کړي وو. خو د دهٔ مخالفينو ددهٔ خلاف د مذهبي تعصب ګنده پروپېګنډه شروع کړله، چې د دهٔ نه پس د مغلو د سلطنت د زوال يو باعث وګرځېدهٔ. خو د دې زوال اصل سبب د دهٔ د جانشينو نالايقي وه په دکن کښې مړ شهٔ او هم هلته ښخ دے. د پښتو نوميالے شاعر خوشحال خان ختك دهٔ د پېښور ګورنر د مخالفو رپورټونو په وجه په بند کښې اچولے وهٔ. دغه وجه وه چې ددې لوړ شاعر وروستنے کلام ددهٔ د هجو او غندنې نه ډك دے.

**عالمونه** :- (عا+لَ+مُو+نَ)-[عپ تر-اس-ج]- د عالم جمع ده- ډېر زيات خلك. لکه: هلته عالمونه جمع شوي وو.

**عالمي** :- (عا+لَ+مي)-[عف تر-صف]- (۱) عالم سره تعلق لرونکے- دنياوي. (۲) درستې نړۍ سره تعلق لرونکے. د درستې دنيا- لکه عالمي مېله.

(۳) د دنیا اوسېدونکي.

**عالمیان** :- (عا+لَ+م+یا+نْ)-[عف تر-اس-ج]- د عالمي جمع ده- خلک- وګړي- انسانان- بني ادم.

**عالمین** :- (عا+لَ+مِي+نْ)-[ع-اس-ج]- د عالم عربي جمع ده- عالمونه جهانونه.

**رب العالمین** :- (رَ+بُ+بُ+ل+عا+ل+مِي+نْ)-[ع تر-اس-مذ]- د عالمونو رب د جهانونو پروردګار.

**عالي** :- (عا+لِي)-[صف]- (۱) اوچت- لوړ- هسک- بالا. (۲) لوے- عظیم- ممتاز. (۳) لوړه مرتبه. (۴) د تعظیم وړ- لکه: مزاج عالي (۵) د تعظیم او عزت دپاره نورو الفاظو سره د لقب وغېره په طور استعمالېږي.

**عالي تبار** :- (ـــ+تَ+با+رْ)-[عف تر-صف-مذ-مؤ: عالي تباره]- د لوئې کورنۍ وګړے- د عزت او تعظیم یو مرکب دے، چې د لویو استادانو د بزرګانو دپاره استعمالېږي.

**عالي تعلیمات** :- (ـــ+تَ+ع+لِي+ما+تْ)- اوچت تعلیمات- اعلی تعلیم.

**عالي جاه** :- (د لوړې مرتبې یا مقام خاوند.

معتقد ئې عالیجاه دے　　مخالف ئې خاکستر (حافظ)

**عالي جاهي** :- (ـــ+جا+هِيْ)-[عف تر-اس-مؤ]- لوړه مرتبه- د اوچتې مرتبې ځاے.

که عالم وَته دلخواهه بادشاهي شوه
عاشقـــي و ماته عالي جاهي شوه　　(خوشحال)

**عالي جناب** :- (ـــ+جَ+نا+بْ).

**عالي مرتبت** :- (ـــ+مَ+رْ+تَ+بَ+تْ)-[ع تر-صف]- د لوړې مرتبې یا مقام خاوند- د حکومت مشرانو او افسرانو وغېره ته دخطاب په موقع وئیلے شي. یا په خطونو درخواستونو کښې ورته لیکلے شي.

**عالي حضرت** :- (ـــ+حَ+ضْ+رَ+تْ)-و ـــ عالي جناب...)

**عالیخاندان** :- (ـــ+خا+نَ+دا+نْ)- و ـــ عالي تبار)

**عالي درګاه** :- (ـــ+دَ+رْ+ګا+ه)- و ـــ عالي تبار)

**عالي دماغ** :- (ـــ+د+ما+غْ)-[عف تر-صف-مذ-مؤ: دماغه]- لوړ دماغ لرونکے- د اوچتو خیالاتو خاوند- د لوړ عقل فکر خاوند- روښانه فکر واله.

**عالي شان** :- (ـــ+شا+نْ)-[عف تر-صف-مذ-مؤ: شانه]- (۱) د لوړ شان خاوند- لوے شان شوکت واله- د لوئې مرتبې. (۲) شاندار- لوے- ډېر ښکلے یا لوړ (عمارت وغېره). (۳) د افغانستان یو اعزازي لقب.

ادمیان بـه خـوار خستـه وي
تـه ئې شفیع شـه عـالي شانه

**عالي شان و شجاعت همراه** :- (ـــ+شا+(نو) شَ+جا+عَ+تْ+هَ+مْ+را+ه) (لقب) ـــ د افغانستان یو د عزت الفاظ چې د خاصو لویو افسرانو د نوم سره استعمالیدهٔ- عموماً د اختصار په طور ع-ش- لیکلے کېږي. (د فرقه مشر لقب).

**عالي ظرف** :- (ـــ+ظَ+رْ+فْ)-[عف تر-صف مذ-مؤ: ظرفه]- د لوے لوښي خاوند- مجازاً د لوئې ستې خاوند- لوے زړے- لوے زغم واله.

**عالي ظرفي** :- (ـــ+ظَ+رْ+فِيْ)-[عف تر-اس-مو]- د لوے لوښي خاوند توب- لویه سینه لرنه- لویه حوصله او زغم لرنه- ارت زړوالے.

**عالي فطرت** :- (ـــ+ف+ط+رَ+تْ)-[عف تر-صف مذ-مؤ:ه]- د لوړ فطرت خاوند- د لوړو عادتونو خاوند- د ښو عادتونو څښتن.

چې په اصل کښې شجاع عالي فطرت وي
د هغهٔ پـــه زړهٔ کښې حب پرېوزي د ښکار　　(خوشحال)

**عالي قدر** :- (ـــ+قَ+دَ+رْ)-[عف تر-صف-مذ، مؤ: قدره]- د لوړ قدر خاوند- لوے قدر واله- لوئې مرتبې یا عزت واله.

**عالي مکتب** :- (ـــ+مَ+کْ+تَ+بْ)-[عف تر- اس-مذ-ج: مکتبونه]- لوړه مدرسه- د اوچتې درجې مدرسه- هائې سکول.

**عالي نسب** :- (د اوچت نسب او خاندان نه.

خېرالخلق نبي عرب دے
قرېشي عالي نسب دے　　(حافظ)

**عالي همت** :- (ـــ+هِ+مْ+مَ+تْ)-[عف تر-صف-مذ-مؤ:همته]- (۱) د لوے همت څښتن- لوړ همت واله- د لوئې حوصلې خاوند- ډېر زړهٔ ور. (۲) سخي- فیاض.

**عالي همتي** :- (ـــ+هِ+مْ+مَ+تي)-[عف تر- اس-مؤ]- (۱) لوړ همت- لویه سینه لرنه- لوے زړتوب- لویه حوصله لرنه. (۲) سخاوت.

**عالیازي** :- (عا+لِي+زَ+ي)-[اس مع]- د ناصرو څانګه ده- غلځي دي.

**عالیه** :- (عا+لِي+یَ)-[ع-صف-مو]- (۱) د عالي تانیث دے. و ـــ عالي) (۲) د زنانهٔ د نوم په طور استعمالېږي.

**عالیـــه خېـــل** :- (عا+لِي+یَ+خېـــل)-[اس-مـــع]- د کرنـاخېلو څانګـــه ده. (کرناخېل (ملك دين خېل) افریدي دي.

**عالیـه خېـل** :- (عا+لِي+یَ+خېـل)-[اس-مـع]- د سیمکئیو وړه څانګـه ده (سیمکي خَلي خَېل (برني شمن خېل) محسود دي.

**عام** :- (عا+م)-[ع-اس-مذ]- کال- (ف-سال)

**عام الفیل** :- (ـــ+مُ+لْ+فِي+لْ)-[ع-تر-اس-مذ]- د هاتي کال- هغه کال ترې مراد دے چې ابرهه نومې یو سردار د یمن له خوا مکې ته را روان شوے وهٔ، چې خان کعبه ورانه کړي، چې مکې ته نزدې را ورسید، نو الله پاك پرې توتاګرکي وګمارل دا مرغۍ د زرګونو په شمېر کښې راغلې او وارهٔ وارهٔ کاڼي ئې پرې ور وورول او په دې باندې ئې ابرهه سره د خپله لښکره برباد کړو. عربو به د وخت حساب د دغې مشهور کال نه کاوه.

**عـام** :- (عـا+مْ)-[ع-صف مـذ-مؤ: عامـه]- (۱) د (خـاص) ضـد دے- هریـو (۲) هغه کار- خصوصیت یا حکم چې په هرچا کښې موندے شي. (۳) پـه هرځـاے کښـې مونـدلے لېـدونکے. (۴) ټول، کـل (۵) معمـولي- رواجي- ادنی. (۶) خور وور. (۷) مشهور- هرچاته معلوم.

**عام اولس** :- (ـــ+اُو+لْ+سْ)

**عام خلک** :- (ـــ+خَ+لَ+ق)

**عـام وګـړے** :- (ـــ+وُ+ګ+ړے)-[عف تر-اس]- د خاص خلک وغېره ضد- چې هریو سړے نر ښځې پکښې شاملې وي- عوام.

**عام بازار** :- (ـــ+با+زا+رْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:بازارونه]- هغه بازار چې عام خلک پکښې سود سودا کوي لکه: دا څیز خو په عام بازار کښې په سل روپۍ مېلاوېږي- تا په شپږ شلې څنګه واخست.

**عـام روش** :- (ـــ+رَ+و+شْ)-[عف تر-اس-مذ]- عامه طریقه- عام دود عامه قاعده- هغه طریقه یا دود چې هرڅوك ئې اختیاروي یا ئې اختیار کړے وي.

**عام فهم** :- (ـــ+فَ+ه+مْ)-[عف تر-صف مذ-مؤ: فهمه]- په اسانه په فهم او پوهه کښې راتلونکے، چې ټول پرې په اسانه پوهه شي- اسانه.

**عام کول** :- (مص تر)- خورول- هر خواته رسول- هرچاته رسول- مشهورول.

**عام مصرف** :- (ـــ+مَ+ص+رَ+فْ)-[عف تر-اس-مذ]- (۱) هغه پيسې ټکې لګول چې د عامو خلکو د ضرورت دپاره وي. (۲) عمومي خرچ.

**عام مقبوليت** :- (ـــ+مَ+قْ+بُو+لِي+یَ+تْ)-[عف تر- اس مذ]- په عامو خلکو کښې مقبول کېدنه- په عامو خلکو کښې غوره ګڼلې کېدنه.

**عام والے** :- (ـــ+وا+لے)-[عپ تر- اس-مذ-ج:لي]- عام کېدنه- هرچاته رسېدنه- (د خاص والي ضد).

**خاص و عام** :- (خا+ص+و+ـــ)-[عف تر-اس]- ټول اولس- همه وګړي- ټول خلک چې پکښې هر قسم او د هرې درجې خلک شامل وي.

**په عام ډول سره** :- (عام طور سره- عموماً- عمومي انداز کښې.

**عامر** :- (عا+م+رْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج:عامران-مؤ: عامره]- (۱) اباد وُونکے- تعمير کوونکے. (۲) اباد- ډك- معمور. (۳) د نارينه ؤ په نومونو کښې هم استعمالېږي.

**عامره** :- (عا+م+رَ)-[ع-اس-صف-مؤ-ج: عامرې]- (۱) د (عامر) تانيث دے. (۲) اباد- تعمير شوے. (۳) ډکه- لويه- د خزانې په صفت کښې استعمالېږي يعنې خزانه عامره (شاهي خزانه)

**عامري** :- (عا+م+رِي)-[عف تر-اس-مذ]- د بنو عامر نومې قبيلې سره تعلق لرونکے- د دغې قبيلې وګړے. مشهور افسانوي عاشق قيس (يا مجنون) دې قبيلې ته منسوب کولے شي.

**عامل** :- (عا+م+لْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج: عاملان- عمال-(مؤ: عامله]- (۱) عمل کوونکے- عملدار- حاکم. (۲) کاريګر- کارنده. (۳) د پيريانو او جناتو وغيره د عمل پوهان ټوټې تعويذونه وغيره کوونکے- د جادو منتر پوهان.

نېك عمل د عاملانو نېك فرزند دے
خدا ے څوك مه کړه شراب خور او قمار باز (رحمان بابا)

**عامؤل** :- (عا+مَ+ؤ+لْ)-[مص]- عام کول- عامو خلکو ته يا اولس ته رسول- مشهورول.

**عامه** :- (عا+م+مَ)-[تف]- د عامو خلکو- د عوامو متعلق- چې تعلق ئې عامو خلکو يا رعيت سره وي.

**عامه** :- (عا+مَ)-[ع-صف]- د (عام) تانيث دے. وـــــ عام)

**عام اصطلاح** :- (ـــ+ا+ص+ط+لا+حْ)-[عف تر- اس-مو-ج: ګانې]- هغه اصطلاح کومه چې عام طور په استعمال کښې راځي.

**عامه خبره** :- (مشهوره خبره- هغه خبره چې هر چاته معلومه وي. د خاص خبرې ضد دے.

**عامه رائې** :- (عف تر-اس-مؤ) هغه رائې يا خيال چې ټول اولس يا قام ئې لري. د اکثريت رائې يا خيال.

**رائې عامه** :- (را+ئې+ـــ)-[عف تر-اس-مو]- د عامو خلکو رائې- د ټول اولس رائې- د ټول قام رائې يا خيال.

**عامي** :- (عا+مِي)-[صف- مذ]- عام سړے- اَن پړه- جاهل.

**عاميانه** :- (عا+مِ+يا+نَ)-[عف تر- صف]- د عامو خلکو په انداز يا طريقه- د کمې درجې- بازاري.

**عامېدل** :- (عا+مې+د+لْ)-[مص]- عام کېدل- تر هر چا رسېدل- تر عامو خلکو پورې خورېدل- مشهورېدل- هرچاته معلومه کېدل.

**عائد** :- (عا+ئې+دْ)-[ع-صف-مذ-مؤ: عائده]- ببرته راتلونکے- پسته راګرځېدونکے- چاته راګرځېدونکے.

**عائد** :- (عا+ئې+دْ)-[ع-اس-فا-صف-مؤ: عائده]- راګرزېدلے- وارد کړے.

**عائدکول** :- (مص تر)- چاته راګرځول- په چا واردکول- په ذمه کول- درست راتلل.

**عائدکېدل** :- (مص تر)- چاته راګرځېدل- د چا په ذمه کېدل- په چا وارد کېدل- ګڼلے کېدل- په لاس راتلل.

**عائدات** :- (عا+ئې+دا+تْ)-[ع-اس-ج]- د "عائد" جمع ده. واپس راګرځېدونکي- مجازاً امدني- ګټې- فائدې- د امدنۍ ذريعې- محصولات.

**کالني عائدات** :- (کا+لَ+نِي+ـــ) د کال محصولات- د کال امدن.

**ملي عائدات** :- (م+لْ+لِي+ـــ)-[عف-اس-ج]- ملي ماليات- ملي يا قومي امدني.

**عائداتي** :- (عا+ئې+دا+تِي)-[عف تر-صف]- عائداتو سره تعلق لرونکے- ماليات يا امدنۍ سره تعلق لرونکے.

**عائشه** :- (عا+ئې+شَ)-[اس-مع]- ام المؤمنين (د مؤمنانو مور) حضرت عائشه الصديقه رضى الله تعالى عنها د حضور پاك صلعم د ټولونه کشره بي بي- د حضرت ابوبکر رضى الله عنه لور- ۶۱۲ء کښې پېدا او په ۶۷۷ء کښې وفات شوه. ۳۵۶هـ کښې ئې د جمل په جنګ کښې دحضرت علي رضى الله عنه خلاف جنګېدلې وه ډېره لويه عالمه او فقيه وه ډېر حديثونه ترې روايت کړے شوي دي. (۲) د مسلمانانو زنانه ؤ يو عام نوم دے.

**عبا** :- (عَ+با)-[ع-اس-مؤ-ج: عباګانې]- هغه اوږده جامه- چې عموماً د پشم نه جوړولے شي- او غريب خلک ئې اغوندي (په مقابله کښې د (قبا) چې شته من خلک ئې اغوندي) جُبه- عذکه- شوکه- اوږد کوټ شان.

**عبا پوش** :- (ـــ+پو+ش)-[عف تر- صف مذ]- (۱) هغه سړے چې عبا ئې اغوستې وي. (۲) درويش- فقير.

**عُباد** :- (عُ+بّ+با+د)-[ع-اس-ج]- د (عابد) جمع ده. عابدان- عبادت کوونکي- عبادت ګذاره خلک.

**عباد** :- (ع+با+د)-[ع-اس-ج]- د (عبد) جمع ده. بندګان- بنديان.

**عباد الله** :- (ـــ+دُ+لْ لا+ه)-[ع تر-اس-ج]- د الله پاك بنديان- د خدا ے پاك مخلوق.

**عبادت** :- (ع+با+دَ+تْ)-[ع-اس-م-ج:عبادتونه]- بندګي- پرستش. د خدا ے يادونه- نمونځونه- دعاګانې.

**عبادت خانه** :- (ـــ+خا+نَ)

**عبادت ګاه** :- (ـــ+ګا+(ه))-[عف تر-اس-مذ]- هغه ځا ے يا عمارت چرته چې د خپل معبود عبادت يا بندګي کولے شي- د پرستش کولو ځا ے- معبد- مندر- جمات- ماګت.

**عبادت کول** :- (پرستش کول- بندګي کول. خدا ے يادول- د الله پاك بندي کول.

**عبادتي** :- (ع+با+دَ+تي)-[عپ تر-صف]- (۱) عبادت سره متعلق- عبادت ته منسوب. (۲) عبادت کوونکے.

**عبارت** :- (ع+با+رَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: عبارتونه]- (۱) بيان- وېنا- ليك- مضمون- ليکلے بيان يا وېنا.

د بل خط په عبارت به نظر نۀ کا؛
چې نظر وکاندې ستا په خط و خال څوك (رحمان بابا)

(۲) د ليك انداز- انشاء

په زر ژبه ئې ستا په واړه يو دے
عبارت که مختلف شۀ يو مضمون شۀ (خوشحال)

(۴) مراد - تعبير.

**عبارت ارائي** :- (ـــ+آ+را+ئي)-[عف تر- اس -مؤ] - د ليك اراسته كونه- مضمونه ښكلے كونه- په تكلف سره مضمون وغېره ليكنه انشاء پردازي.

**عبارت ارائي كول** :- (په ليك كښې د ښكلا دپاره د تكلف نه كار اخيستل- په ليك كښې ښكلي ښكلي الفاظ محاورې تشبيهات وغېره استعمالول- انشاء پردازي كول.

**عبارت ترې دادے چې** :- (جمله) مراد دے- د دغې تحرير يا لفظ وغېره نه مراد دادے چې---- (عموماً په داسې موقع وېلے كېږي چې د جملې يا د لفظ د اصل معنو په ځائے بله څۀ معنٰى مراد وي. يعنې كنايه غوندې وي).

**عبارت سازي** :- (ـــ+سا+زي)-[عف تر-اس-مؤ] - عبارت ارايي- ښكلے عبارت (مضمون وغېره) ليكنه.

**په بل عبارت (سره)** :- (په بل مطلب كښې- په بله طريقه (د بيان سره)- په بل انداز.

**په لنډ عبارت** :- (په مختصر طور سره- مختصراً.

**عبارت خېل** :- (ع+با+رَ+تْ+خېل)-[اس مع] - د سلطان خېلو ښاڅګه ده. او سلطان خېل (رانيي زي (اكوزي) يوسفزي دي.

**عباس** :- (عَ+بْ+با+سْ)-[ع-صف] - شلوونكے زمرے- داړونكے مزرے.

**عباسؓ** :- (عَ+بْ+با+س)-[اس مع] - (۱) د حضور پاك صلى الله عليه وسلم د ترو لونه د كشر ترۀ نوم په ۲۵۲ء كښې ۸۸ كالو په عمر كښې وفات شۀ. د اسلامي سلطنت عباسي خليفه ګان د دوي د اولاده څخه وو. چې د ۱۳۲ ه (۷۴۹ء) نه واخلې تر ۶۴۸ ه (۱۲۵۸) پورې ئې حكومت كړے دے.
(۲) د حضرت علي كرم الله وجهه د يو زوے نوم چې د هغې بي بي نه وو. كومه چې هغوي د بي بي فاطميؓ د وفات نه پس په نكاح كړې وه. د كربلا په سانحه كښې د امام حسين رضي الله عنه ملاتړ او علم بردار وۀ ـ ځكه ورته عباسي علم بردار هم وائي.

يـــو امير حمـــزهؓ سيدالشهداء وۀ
بل عباسؓ د دين راسخ په خصمانه دے (حافظ)

**بنو عباس** :- (بَ+نُو+ـــ)- وـــــ عباسي.

**عباس خېل** :- (عَ+با+سْ+خېل)-[اس مع] - د شمشي خېلو ښاڅګه ده. (شمشي خېل(شيخ خېل)-(تاجي خېل)-(بوسي)-(نصري)-(احمدزي)-(درويش خېل) وزير دي.

**عباس خېل** :- (عَ+با+سْ+خېل)-[اس مع] - د اباخېلو وړه ښاڅګه ده او ابا خېل (د اسماعيل زي(دولت زي(ملېزي) بنېروال دي.

**عباس خېل** :- (د دغه)-[اس مع] - د پنځه پلارو ښاڅګه ده. (پنځه پلاري (عبدالله ئي)-(ابمل خېل)-(بهلول زي) محسود دي.

**عباس خېل** :- (د دغه)-[اس مع] - د سمي خېلو ښاڅګه ده. (سمي خېل (پلي خېل)-(منزي خېل)-(علي زي) محسود دي.

**عباس خېل** :- (د دغه)-[اس مع] - د ګيتا خېلو ښاڅګه ده. (ګيتا خېل (محمد خېل)-(مَلَخ)-(ملي زاد)- داوړ دي.

**عباس خېل** :- (عَ+با+سْ+خېل)-[اس مع] - د ترغرو ښاڅګه ده. كاكړ دي.

**عباسي** :- (عَ+بْ+با+سِي)-[اس-مع] - حضرت عباسؓ ته منسوب- د حضرت عباسؓ د اولاد څخه- د اسلامي سلطنت حكمرانان چې عموماً ((خلفائي عباسيه)) بللے شي. دوي د ۷۵۰ء نه واخلې تر ۱۲۵۸ء پورې حكومت كړے وۀ.

**عباسي** :- (عَ+با+سي)-[عف تر-اس] - (۱) تور رنګ- ځكه چې عباسي خليفه ګانو اكثر د توررنګ جامې اغوستې. (۲) سور رنګ چې پكښې د اودي رنګ ګډون وي. (۲) يوه پخوانۍ سكه.

**عباسي ګل** :- (د يو مشهور ګل نوم دے- ګل عباسي- چې مختلف رنګونه لري- عام خلك ورته ګلاباسي وائي.

پـــــه يـــوه مزكه يـــوۀ باغبان كرلي
عباسي ګلونه زېړو سپين و سرۀ كړي (خوشحال)

**عباسيان** :- (عَ+بْ+با+س+يا+نْ)-[عف تر- اس-ج] - وــــــ عباسي.

**عبث** :- (عَ+بَ+ثْ)-[ع- صف-مذ-مؤ: عبثه] - (۱) بې فائدې- بېهوده- فضوله- بېكاره. (۲) توئې- ضائع. (۳) ناحق- بې وجهې- برناحقه.

**عبث تلل** :- ((مص تر)- عبث كېدل- ضائع كېدل- بې فائدې صرف كېدل لكه: تپول زيار مې عبث لاړ.

**عبث ځان كړول** :- (بې فائدې خوارې كول- لاحاصله زيار كښل.

**عبث خبرې** :- (ـــ+خَ+ب+رې)- فضولې خبرې- بې فائدې يا بې مطلبه خبرې- كاواكې خبرې.

**عبث كار** :- (ـــ+كا+رْ)-[عپ تر-اس-مذ-ج: كارونه] - بې فائدې كار- خوشې كار- فضول كار.

**عبث كار – كارونه كول** :- (بې فائدې كار يا كارونه كول- خوشے كار- كارونه كول.

**عبث كول** :- (ضائع كول- بربادول- توئې كول.

**عبث كېدل** :- (ضائع كېدل- برباد كېدل- بې فائدې تلل.

**عبثول** :- (عَ+بَ+ثَ+وُ+لْ)- [مص مت] - عبث كول- ضائع كول- بربادول- بې ځايه لګول.

**عبثېدل** :- (عَ+بَ+ثې+د+لْ)-[مصل لا] - عبث كېدل- ضائع كېدل.

**عبد** :- (عَ+بْ+دْ)-[سابقه] - بنده- غلام- مرئے- د سابقې په طور د مسلمانانو په نومونو كښې راځي. دې سابقې سره بل لفظ د الله پاك په نومونو كښې راوستے شي. لكه: عبدالله، عبدالرحمٰن او داسې نور. (عوام ځينې وخت د دې لفظ تلفظ "اَوْدَ" هم كوي لكه: (اَوْدَلْ صَ مَ د) بلكه ځينې وخت دا نور هم مختصر كړي. يعني (اَدْ-) ترې جوړ كړي لكه: (اَدْلْ ص+مَ+دْ) خو د دې قسم تلفظ اګر چې په عوامو كښې عام دے- خو درست نۀ دے. د عوامو او د جټانو لهجه ده.

**عبدالدنيا** :- (ـــ+دُ+دْ+دُ+نْ+يا)-[ع تر- اس-مذ] - د دنيا بنده- هغه كس چې د دنيا د ګټې او فائدو په كار كښې بوخت وي. او دين ته ئې شا كړې وي- دنيادار- د دنيا طالب.

**عبدالزوجه** :- (ـــ+دُ+زْ زو+جَ)-[ع تر- اس-مذ] - د ښځې بنده- د ښځې مريد- هغه كس چې په هره خبره كښې د ښځې وينا مني. په ښځه كمرزورے خاوند.

څوك سدو غوندې نامرد عبدالزوجه شي
په تنګســـــه له خپلـــه پلاره شي وېزار (خوشحال)

**عبدالشـهوت** :- (ـــ+دُ+شْ+ش+هْ+وَ+تْ)-[ع تر- اس-مذ] - د شهوت بنده- هغه كس چې په نفساتي خواهشونو كښې داسې بوخت شي، چې دين دنيا ترې هېره شي. ډېر شهوتي او د ښځو خوښوونكے سړے.

**عبدالجبار شاه** :- (اس-مع)- د سوات اخري والي- هر كله چې رياست په پاكستان كښې شامل كړے شۀ، نو د والي صاحب حكمراني ختمه

شـوه- ددهٔ د حسـن انتظـام- د ریاست د ترقـۍ او د امـن امـان اوس هـم تعریفونه کېږي.

**عبـدالرحمان خېـل** :- (عَ+بُ+دُ+رُ+رَ+حْ+ما+نْ+خېـل)-[اس-مـع]- د شېر خېلـو څانګه ده. (شېرخېل-هېبت خېل-ناناخېل-بهلول زي محسود دي.

**عبدالرحمان خېل** :- (د دغـه)-[اس-مع]- د محمدخېلو څانګـه ده. محمد خېـل- ملخ (ملي زاد) داوړ دي.

**عبـدالرحمان خېـل** :- (د دغـه)-[اس-مـع]- د ناناخېلو څانګـه ده. بهلـول زے محسـود دي. بیـا د عبـدالرحمان خېلـو څـانګې دادي: پیـر داد خېـل او میرداد خېل.

**عبدالرحمان خېل** :- (د دغـه)-[اس-مـع]- د بازید خېلو څانګه ده. بازید خېـل- شېخان- د اورکزیو همسایه قبیله ده.

**عبدالرحمان خېل** :- (د دغه)-[اس-مع]- د موسٰی خېلو څانګه ده. موسٰی خېـل- ماموزۍ (شکرزۍ) اورکزي دي.

**عبدالرحمان خېل** :- (د دغه)-[اس-مع]- د ایدرخېلو څانګه ده. ایدر خېـل- علي خېل- اتمان خېل- درویش خېل وزیر دي.

**عبدالرحمان زے**:- (عَ+بُ+دُ+رُ+رَ+حْ+ما+نْ+زَ+ے)-[اس-مـع]- د پاریزنو څانګه ده- سنزرخېل کاکړ دي.

**عبدالرحیم خېل** :- (عَ+بُ+دُ+رُ+رَ+حي+مُ+خېل)-[اس-مع]- بابر خېـل –خوجـل خېل- شودیي خېل- احمدزي- درویش خېل وزیر دي.

**عبـدالرحیم خېـل** :- (عَ+بُ+دُ+رُ+رَ+حي+م+خېـل)-[اس-مـع]- د لنـډي خېلـو څانګه ده. لنډي خېل- سپاه افریدي دي.

**عبدالرحیم خېل** :- (د دغه)-[اس-مع]- د میرزئیو څانګه ده. میرزی- علي زی- سنزخېل کاکړ دي. عام طور سره دې قبیلې ته ((رحیم خېل)) وائي.

**عبدالرحیم زی** :- (عَ+بُ+دُ+رُ+رَ+حي+مْ+زَ+يْ)-[اس-مـع]- د مهتـر زیـو څانګه ده- مهترزي- هارون خېل (سناټیا) کاکړ دي.

**عبدالرحیم هوتک** :- (اس-مع)- د پښتو شاعر او عالم اصلاً د بولان اوسېدونکے وۀ .قنـدهار تـه راغـے- بیـا پـه ۱۱۵۰ هــ کښـې لـه هغـه ځایـه روان شـۀ پنځوس کاله ئې په بخارا ، سمرقند او نېشاپور وغېره ځایونو کښې تېر کړل.

**عبدالرشید اخون** :- (اس-مع)- د ملتان د پښتنو څخه وۀ .د پلار نوم ئې سلطان حسین وۀ .د ملتان نه سنګرګوټ ته راغے. ډېر ښۀ شاعر وۀ .پـه ۱۱۲۹هــ کښې رشیدالبیان نومې دیني کتاب ئې ولیکۀ، چې د درستې پښتو نخواه زنانه په کورني درس کښې اول همدغه کتاب لولي.

**عبدالصمد اڅکزے** :- (اس-مع)- د بلوچستان دسیمې په ګلستان کښې وزېږېد- د پېرنګیانو خلاف ئې سیاسي تحریکونو کښې ټینګـه برخـه واخسـته او درست عمر ئې د قام او ملك په خدمت کښې تېر کړو- په پښتو ژبه ډېر مئین وۀ.

**عبدالعزیز خېـل** :- (عَ+بُ+دُ+لْ+عَ+زي+زْ+خېـل)-[اس-مـع]- دا د محمـد (خېلـو) اورکزیو څانګه ده. بیا ددې ښکته څانګې دادي: باراك دام او قدم خېل.

**عبدالعظیم رانړي زے** :- (پښتون عالم او شاعر- اصلاً د سوات وۀ- د پېښـور خوا کښې برتهکال نومي کلي ته راغـے- دلتـه استوګن شـۀ او دیني درس ئې ورکـاوۀ- کـلام ئې هم صـوفیانه دے- پـه ۱۱۲۷هــ کښـې زېږېدلے او پـه ۱۲۵۳هـ کښې وفات شوے دے.

**عبدالعلي اخونـدزاده** :- (اس-مع)- د یو اوچتـې پـائې شـاعر او ادیـب- پـه کوټـه (کوئټه) پشین او د کاکړ په علاقه کښې اوسېدۀ. په قـام پـاني زے کـاکړ وۀ- څۀ وخت ئې په قندهار کښې هم تېر کړے دے.

**عبـدالغفار خـان** :- (اس-مـع)- د پښـتنو سـتر نومیـالے اوقـومي مشـر دے- د پېرنګي استعمار مخالف او د پښـتنود وحدت او خپلواکۍ ملي مبارز وۀ .په قومي او سیاسي توګه د پښتنو رابېدارولو او راپاڅولو په لړ کښې ستر خدمات کړي دي. د پښتو ژبې ښۀ لیکوال او ښۀ مقرروۀ .پښـتانه ئـې تعظیمـاً د باچاخـان او فخرافغـان پـه لقبونـو سـره یـادوي. ۱۸۹۰ء کښې د چارسدې په اتمانزو نومې کلي کښې زېږېدلے او پـه کـال ۱۹۸۸ کښې په حق رسېدلے ، مزار ئې جلال اباد کښې دے.

**عبدالقادر** :- (عَ+بُ+دُ+لْ+قا+دِ+رْ)-[اس-مع]- د مشهور ولي نوم- د مـور او پـلار دواړو د طرفـه سـید وۀ .ډېـر لـوے عـالم- زاهـد عبـادت ګـذار- متقـي او پرهیزګـار شخصیت ؤ. د دوي پـه ژونـد کښـې پـه زرګونـو مریـدان وو. دا سلسله تر اوسه جاري ده. او د دې سلسلې نوم (قادریـه) اېښـودے شـوے دے. دوي پـه ۴۷۱ هــ کښـې پیـدا شـوي او پـه ۵۲۲ هــ کښـې پـه حـق رسېدلي وو. په بغداد کښې ئې مزار دے. په زرګونو خلک ئې زیارت لـه ځي. د دوي مشهور تصنیف فتوح الغېب دے. د پیدائش د کلي جیلان په وجه دوي ته (جیلاني) وائي. عام خلک ورته پیران پیر وائـي. او پښـتانۀ ورته (لوے څوان) وائي.

**عبـدالقادر خټـک** :- (اس-مـع)- د خوشـحال خـان خټـك زوے- یـو لـوړ شـاعر او عالم- طبیعت ئې تصوف ته مائل وۀ .په اخره کښې ئې په نوښار کښـې درس ورکاوۀ. د یو اوچتې پائې دیوان نه عـلاوه نـور ئې هم ډېـر کتابونـه لیکلـي دي، چـې د یوسـف خـان زلېخـې قیصـه او د شـېخ سـعدي د ګلسـتان ترجمـه پکښـې د ډېر قـدر وړ تصـنیفونه دي. ۱۰۹۱ هــ کښـې زېږېدلے وۀ .حدیقه خټك ئې په ۱۱۱۵ هـ کښې نظم کړے دے.

**عبدالکریم خېل** :- (عَ+بُ+دُ+لْ+كَ+ري+مْ+خېل)-[اس-مع]- د مهترزئیـو څانګـه ده. (مهترزي- هارون خېل- سناټیا کاکړ دي.

**عبدالله** :- (عَ+بُ+دُ+لْ+لا+هْ)-[اس-مع]- د حضور پاك صلعم د پلار نوم- د (عبدالله) په نامه د اسلام په تاریخ کښې ډېر ګڼ نومیالي کسـان تېر شوي دي، چې دلته ئې ذکر نه شي کېدے- ډېر زیات مشهور (مذهبي لحاظ سره) پکښې عبدالله ابن زبیرؓ- عبدالله ابن عباسؓ- عبدالله بن مسعودؓ وغېره دي.

**عبدالله خېل** :- (عَ+ب+دُ+لْ+لا+خېل)-[اس-مع]- د پني یوه قبیله ده- (لانوري د عبدالله خېلو څانګه ده).

**عبدالله ئي** :- (عَ+بُ+دُ+لْ+لا+ئي)-[اس-مـع]- د ابمـال خېلو څانګه ده. (ابمـل خېل- بهلول زۍ محسود دي. د عبدالله ئي (عبدللۍ یا عبدلي څانګې دادي: پنځه پلاره او لامي خېل.

**عبــدالله زی** :- (اس-مــع)- د ســنزرخېل څانګــه ده. ســنزرخېل کــاکړ دي. د عبدالله زئیو څانګې دادي: پاخیزے- بدین زے- چنې زے او ملي زے.

**عبدالله زی** :- (اس-مع)- د اغشي زئیو څانګه ده. اغشٰی زئی- اچکزۍ (ابدال) ترین دي.

**عبدالودود صاحبزاده** :- (اس-مع)- د سوات اولنے حکمران.

**عبدل** :- (اس-مـع) د عبدالله (یا دبل کـوم داسـې نوم چې ((ال)) کښـې ئې د لام اواز په ښکاره وئیلې شي لکه: عبدالحق- عبدالحی وغېره مخفف دے.

**عبـدل خېـل** :- (عَ+بُ+دُ+لْ+خېـل)-[اس-مـع]- ګنګـي خېـل- بـومي-نصـرۍ- کالوخېل- احمد زي- درویش خېل) وزیر دي.

**عبدال خېل** :- (عَ+ب+دُ+لْ+خېـل)-[اس-مـع]- د مستو خېلو څانګه ده- (مسـتو خېل)- مسوزي- لشکرزي اورکزي دي.

**عبدل خېل** :- (ددغه)-[اس-مع]- دقاسم خېلو څانګه ده- قاسم خېل (بدين زي)- شمن خېل محسود دي.

**عبدل خېل** :- (د دغه)-[اس-مع]- د ارمزخېلو څانګه ده- (ارمزخېل (سپاه)- افريدي دي. د عبدال خېلو ښکته څانګې دادي: تورخېل او سلطان خېل.

**عبدل زے**:- (ع+بْ+دُ+لْ+زَ+ے)-[اس-مع]- د بازئيو څانګه ده. (بازي- هارون خېل(سناټيا) کاکړ دي.

**عبدل خېل** :- (د دغه)-[اس-مع]- د بوراخېلو څانګه ده. (بوراخېل(مهمت خېل(اتمان زي(درويش خېل) وزير دي. د عبدال خېلو څانګې دادي: تېول خېل او سکندر خېل.

**عبدل خېل** :- (د دغه)-[اس-مع]- د لنګر خېلو څانګه ده. (لنګرخېل(ګرې خېل(منزي(علي زي) محسود دي.

**عبدلاني** :- (ع+بْ+دُ+لْ+لا+ني)-[اس-مع]- د مخيانيو څانګه ده. تور ترين دي.

**عبدل ودانی**:- (ع+بْ+دُ+لْ+وَ+دا+نَ+یْ)-[اس-مع]- د ملك دينئيو څانګه ده. (ملك دين(منزئ(علي زئ) محسود دي. (بله شجره کښې دا نوم نشته- په دې شجره کښې د ملك ديني درې څانګې ليکلې دي- مون خېل- کيراخېل او دلي خېل د عبدال ودانئ پکښې نشته).

**عبدل خېل** :- (د دغه)-[اس-مع]- د عمرزئيو څانګه ده. (عمزي(زيرا خېل( عمزوني(ملي زاد) داوړ دي.

**عبدمناف** :- (ع+بْ+د+مَ+نا+فْ)-[اس-مع]- د حضور پاك صلی الله عليه وسلم غور نيکۀ د هاشم پلار.

هاشم زوے دعبدمناف بالاشي
اصل کان د هغه لعل شاهانه دے (حافظ)

**عبده** :- (ع+بْ+دُ+هْ)-[اس-مع]- د عربي لفظ دے. د ((هغۀ بنده)). د ځينو عربو د نوم په طور راځي- خو په پښتنو کښې ئې رواج نشته.

**عبديت** :- (عَ+بْ+دِ+یَ+تْ)-[ع-اس-مذ]- بندګي- مريي توب- غلامي- بنده توب.

**عبراني** :- (عَ+بْ+را+ني)-[اس-مع]- د يوې پخوانۍ ژبې نوم، چې د ډېرو پخوانو پېغمبرانو ژبه وه. او تورات او ځينې نورې صحيفې په دې ژبې کښې نازلې شوې دي.

**عبرت** :- (ع+بْ+رَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: عبرتونه]- (۱) نصحيت اخېستل. پند قبلول. (۲) دزمانې د پېښو نه، سبق يا نصحيت اخېستل- (د دې لفظ اصل عربي معنٰی د طبيعت په يو خاص نوع سره د غفلت نه پوهې طرف وراپورې وتل دي. برنۍ معنې ئې مجازي دي).

**عبرت اخېستل** :- (مص-تر)- نصحيت اخېستل- د څۀ خبرې کار يا د پېښې نه نصيحت تر لاسه کول.

همېشه ئې مشغولاد خداے په ياد ده
چې اخېستے ئې د دۀ د خولې عبرت دے (خواجه محمد)

**عبرت انګېز** :- (ـــ+اَ+نْ+ګې+زْ)-[اعف تر-صف-مذ-مؤ: عبرت انګېزه]- عبرت را ولاړوونکے- داسې خبره يا پېښه چې سړے ئې واوري يا ووينې نو چې نصحيت ترې حاصل کړي- نصيحت ورکوونکے.

**عبرت ګرزول- نوروله** :- (داسې کار کول يا داسې سزا ورکول چې د نورو ليدونکو يا اورېدونکو دپاره سبق وګرځي.

**عبرت ناک** :- (ـــ+نا+كْ)-[اعف تر-صف-مذ-ج: عبرت ناکه]- عبرت ورکوونکے- نصيحت ورکوونکے.

**عبرت ناکه** :- (د عبرت ناك تانيث دے.

**عبرت ناکه سزا** :- (عپ تر-اس-مؤ-ج—کې—ګانې)- داسې سزا، چې د مجرم په زړۀ کښې وېره پېدا شي او د مخې دپاره بيا د دغې کار جرات ونه کړي. سبق يا نصحيت ورکوونکې سزا- مجازاً ډېره سخته سزا.

**عبري** :- (ع+بَ+رِيْ)-[ع-اس-مو]- د پخواني کنعان (شام) د ملك ژبه- عبراني چې اوس عموماً د يهوديانو ژبه ګڼلې شي- حقيقةً داسې نۀ ده. تورات په دې ژبه کښې وۀ.-(د دې ژبې دنوم وجه تسميه په مختلف ډول بيان شوې ده- لکه ((عبر)) غاړې ته وائي. او دا به پخوا د فرات د سيند په غاړو وئيلې کېده- يا دا چې دا د ((عبر)) (بن سام بن نوح) په نام نومولې شوې ده.

**عَبَس** :- (عَ+بَ+سْ)-[اصف]- د عبث وران شکل، چې عام استعمال ئې نشته. صحيح املاء ئې عبث ده.

ته ئې شناخت علم ادب لره پېدا کړې
نۀ چې ګرځه بېهوده چارې عبس کړه (خوشحال)

**عبس** :- (عَ+بْ/ بَ+سْ)-[ع-اس]- تريو مخ يا تند ے- عبوس.

**عبقري** :- (عَ+بْ+قْ+رِيْ)-[ع-اس]- (۱) عبقريت ته منسوب، چې معنٰی ئې کپړا او فرش وغېره ده- کوم چې ډېر مضبوط او ښکلي دي- مجازاً قيمتي بچونه يا جامې او فرش وغېره. (۲) مجازاً ډېر قيمتي- نايابه- نادر.

**عبوديت** :- (عُ+بُو+دِي+یَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج—ونه]- (۱) بندګي- غلامي- بنده توب-مري توب. (۲) عبادت- اطاعت.

**عبور** :- (عُ+بُو+رْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) د سړك لارې يا د خوړ درياب وغېره نه پورې وتل.

د صراط په عبور خلاص شي له ثُبُوره
مؤمنان جنت له ځي چست و چالاك شي (حافظ)

(۲) د علم کتابونو وغېره نه پوې وتنه- په کوم مضمون يا مسئله حاوي ((بودنه)) لکه: په عربۍ کښې پوره عبور حاصل دے.

**عبور لرل** :- (په کومه مسئله يا مضمونه کښې پوره پوره علم لرل- ډېر ماهر ((بودل)

**عبوس** :- (عُ+بو+سْ)-[ع-صف]- تريو تند ے يا مخ- ترش روئي بوخ بوټ. (د پښتنو بوخ يا بوټ الفاظ د همدې لفظ نه جوړ کړے شوي دي).

**عبوست** :- (عُ+بُو+سَ+تْ)-[ع-اس-مذ]- بوخ توب- تريو تند ے نبونه- بوټ توب.

**عبهر** :- (عَ+بْ+هَ+رْ)-[ع-اس-مذ]- د نرګس دګل عام قسم- کوم چې سپينې پاڼې لري- خو دننه کټوري ئې زېړه وي. (د شهلا د نرګس کټوري تور وي).

**عبيد** :- (عُ+بَي+دْ)-[ع-اس-مذ]- د ((عبد)) تصغير دے.

**عبير** :- (عَ+بِي+رْ)-[ع+اس+مذ]- يو قسم خوشبو ده- چې د مختلفو خوشبويه څيزونو په ګډون جوړؤلے شي- لکه مشك- ګلاب- صندل وغېره. (دا د اوړو يعنې د پوډرو په شکل کښې وي).

**عتاب** :- (ع+تا+بْ)-[ع-اس-مذ-ج—ونه]- (۱) ملامتيا- په قهرېدنه ملامته کونه. (۲) قهر-قضه. (۳) قار.

**عتاب کول** :- (قهر کول- غصه کول- په قهر.

عتاب نور مه کوه د خداے دپاره
خوشحال کله د عتاب تاب لري (خوشحال)

**عتاب موندل – مېندل** :- (د چا د قهر غصې له کبله سزا يا تکليف موندل.

**په عتاب کښې راتلل** :- (د چا د قهر لاندې راتلل- د چا د غصې نتيجه يا تاؤ موندل- د چا په عذاب يا تکليف کښې راتلل.

**الهي عتاب** :- (اِ+لاٰ+هِي+ــــ)-[عف تر-اس-مذ]- د خدا ے پاك قهر- د خدا ے پاك غضب- اسماني افت- قدرتي مصيبت.

**شاهي عتاب** :- (شا+هِي+ــــ)-[عف تر-اس-مذ]- د بادشاه قهر او غصه- د بادشاه بد او رد وئيل.

**عتيق** :- (عَ+تِي+قْ)-[ع-صف]- (۱) زړو- د زړې زمانې- پخوانے. (۲) چوڼ شوے- غوره کړے. (۳) ازاد- اصيل- عزتمند.

ازاده عالم بندي دې که ئې ګورې
د زلفينو په زنځير ئې د ے عتيق (خوشحال)

**عهد عتيق** :- (عَ+هْ+دِ+ــــ)-[عف تر-اس-مذ]- زړه زمانه- پخوانۍ زمانه.

**عهد نامه عتيق** :- (عَ+هـْ+دْ+نا+مَ+ئې+ــــ)-[اس-مع]- پخوانۍ عهدنامه- زړه عهدنامه- د عيسائيانو د مذهبي کتاب ((بائيبل)) دوه برخې دي. په دې کښې اولنۍ برخې ته عهد نامه عتيق يا عهد نامه قديم وائي. په دې کښې تورات او د نورو پېغمبرانو د عيسى عليه السلام نه پخوا تېر شوي دي- صحائف دي. په دوېمه برخه ئې عهد نامه جديد نومېږي- په دې کښې څلور انجيلونه او ځينې نور څيزونه شامل دي.

**عتيقه** :- (عَ+تِي+قَ)-[ع-اس-مؤ:عتيقې-ج:ات]- زوړ- د زړې زمانې څۀ څيز- اينټيق- (Antique).

**عتيقه شناس** :- (ــــ+شِ+نا+س)-[عف تر-اس-صف-ج ــان-مؤ:ــه] د پخوانو زمانو د اثارو پېژندونکے- د اثار قديمه عالم.

**عتيقه شناسي** :- (ــــ+شِ+نا+سِي)-[عف تر-اس-مو]- د پخوانو زمانو د اثارو پېژندنه- د اثارِ قديمه مهارت.

**عثمان** :- (عُ+ثْ+ما+نْ)-[اس-مع-مذ]- حضرت عثمانؓ- مشهور د لوړې درجې صحابي- په عشره مبشره کښې شامل وۀ- د حضور پاك صلعم دوه لوڼه ئې پرله پسې په نکاح کښې راوستې وې. په خلفائې راشدين کښې درېم خليفه- د خلافت په اخري ورځو کښې شر و شور پورته شۀ او **۲۵**هـ کښې په مسجد نبوي کښې په **۲۲۵** هـ کښې شهيد کړے شۀ. ددۀ په وخت کښې هند- ايران- مصر او تر مغربي افريقې پورې ملکونه فتح شوي وو. (۲) په اسلامي تاريخ کښې په دې نامه ډېر مشهور کسان تېر شوي دي يو پکښې عثمان نومې ترك ؤ- د چا په نوم چې د ترکو عظيم الشانه بادشاهي ((عثمانيه)) نومېږي شوې ده- چې د مغرب خلک ورته ((آټومن ايمپاير)) وائي.

**عثمان خان خېل** :- (عُ+ثْ+ما+نْ+خا+نْ+خېل)-[اس-مع]- د بي بي زۍ څانګه ده. (بي بي زۍ (شبي خېل)-(علي زۍ) محسود دي.

**عثمان خېل** :- (عُ+ثْ+ما+نْ+خېل)-[اس-مع]- د تپي خېلو څانګه ده. (تپي خېل (بدين زۍ- شمن خېل) محسود دي.

**عثمان خېل** :- (عُ+ثْ+ما+نْ+خېل)-[اس-مع]- د شنئيو څانګه ده. شنۍ (زخاخېل) افريدي دي. د عثمان خېل ښکته څانګې دادي: مغل خېل او ترکي خېل.

**عثمان خېل** :- (د دغه)-[اس-مع]- د سکندر خېلو څانګه ده. (سکندر خېل)- (کوکي خېل) افريدي دي.

**عثمان خېل** :- (ددغه)-[اس-مع]- د تختي خېلو څانګه ده. (تختي خېل- بقاخېل- ولي خېل- اتمان زۍ- درويش خېل وزير دي. د عثمان خېلو څانګې دادي: مورب خېل او جاني خېل.

**عثمان خېل** :- (ددغه)-[اس-مع]- د بدين خېلو څانګه ده. (بدين خېل- شادي خېل- نصردين- کالوخېل- احمدزۍ- درويش خېل وزير دي.

**عثمان خېل** :- (د دغه)-[اس-مع]- دخدوخېلو څانګه ده. او خدوخېل – صدازۍ- اتمانزۍ- مندڼ يوسفزي دي.

**عثمان خېل** :- (ددغه)-[اس-مع]- د بائي زيو څانګه ده. مهمند دي.

**عثمان خېل** :- (ددغه)-[اس-مع]- د حسن خېلو څانګه ده. او حسن خېل- ګدايي زۍ- الياس زئ ښيروال دي.

**عثمان خېل** :- (ددغه)-[اس مع]- د باندخېلو څانګه ده. باندخېل- بهلول زے محسود دي.

**عثمان زے** :- (عُ+ثْ+ما+نْ+زَ+ے)-[اس-مع]- د کانو زئيو څانګه ده. کانو زے- تتوزے- حسن خېل- دومړ- سنزرخېل کاکړ دي. په بله شجره کښې د دومړ او د دوي نه ښکته نورې قبيلې نشته.

**عثمان زۍ** :- (ددغه)-[اس-مع]- منډن يوسف زي دي. دا د يوسف زيو د دريو لويو ښاخونو يو ښاخ د ے. بيا د عثمان زئيو څانګې دادي: کمال زے او اکازے يا امان زے.

**عثمان زۍ** :- (ددغه)-[اس مع]- د کيپيو څانګه ده. شيراني دي.

**عثمان زۍ** :- (ددغه)-[اس-مع]- د اعشٰی زئيو څانګه ده. اعشٰی زي اچکزي- ابدال- ترين دي.

**عثمان زۍ** :- (ددغه)-[اس-مع]- د غبب زئيو څانګه ده. ايسوټ دي.

**عثمان زۍ** :- (د سليمان زئيو څانګه ده. بابړ دي.

**عثمان کور** :- (عُ+ثْ+ما+نْ+کو+رْ)-[د خواجه خېلو وړوکې څانګه ده. او خواجه خېل- خدين خېل- اشازۍ- الياس زۍ- ښېروال دي.

**عثماني** :- (عُ+ثْ+ما+نِيْ)-[اس-مع]- د پنيو يوه قبيله ده. لالوزۍ د عثمانيو څانګه ده.

**عثماني** :- (عُ+ثْ+ما+نِي)-[عف تر-صف]- (۱) حضرت عثمانؓ سره تعلق لرونکے لکه: مصحف عثماني. (۲) د ((عثمان)) نومې سړي سره تعلق لرونکے. (۳) د ترکو عثماني سلطنت سره تعلق لرونکے.

**عثماني اميراطوري** :- (وـــ عثماني دولت). د عثماني ترکو سلطنت- سلطنت عثمانيه- د يورپ خلک ورته ((اوټومن ايمپائر)) وائي.

**عمثاني خېل** :- (عُ+ثْ+ما+نِي+خېل)-[اس-مع]- د برراني زئيو ښاخ د ے- چې اکوزي- يوسفزي دي. بيا د عثماني خېلو څانګې دادي: عزيزخېل- لُنده خېل او وره خېل په بله شجره کښې دوړ خېل ليکلي شوي دي.

**عثمان کور** :- (عُ+ثْ+ما+نِي+کو+رْ)-[د مېمنه خېلو څانګه ده. خواتي زي مهمند دي.

**عثمانيه** :- (عُ+ثْ+ما+نِي+ىَ)-[صف]- عثماني سلطنت سره تعلق لرونکے.

**عجالت** :- (عِ+جا+لَ+تْ)-[ع-اس-مذ]- جلدي- تادي- عجلت.

**عجالتاً**:- (عِ+جا+لَ+تَ+نْ)-[ع-تف]- په تادۍ سره- په عجلت سره- په تادۍ کښې.

**عجائب** :- (عَ+جا+ئے+بْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) د ((عجب)) جمع ده. وـــ عجيب)- (۲) کله کله د واحد صفت په طور هم استعمالېږي- يعنې عجيبه يا عجيب.

ناڅاپه دوه مشتاق چې سره ووينې په سترګو
تـــر دا به بله نۀ وي په جهان کښې عجائب (خوشحال)

**عجائب خانه** :- (ــــ+خا+نَ)-[عف تر-اس-مو-ج:ــــني]- هغه عمارت چرته چې د یو ملك د پخوانی زمانې عجیبه عجیبه او نادر څیزونه (لکه بوتان، لوښي- وسلې وغېره) د خلکو د کتنې دپاره ایښودے شوي وي. (انګ- میوزیم).

**عجائب ګر (ګهر)** :- (ــــ+ګَ+رْ)-و ــــــــــ عجائب خانه.

**عجائب او غرائب** :- (ــــ+(بو)غَ+را+ئے+بْ)-[عف تر-اس-ج]- عجیبه عجیبه او نادر نادر یا نوي نوي څیزونه.

**عجائبات** :- (عَ+جا+ئے+با+تْ)-[عف تر- اس-ج]- د عجائب جمع ده. یعنې د عجیب جمع الجمع ده. عجیبه عجیبه څیزونه- داسې څیزونه چې کتونکي ته ډېر عجیبه او حېرانوونکي ښکاري.

**اووۀ عجائب** :- (او+ؤ+ــــ)-[عپ تر+اس+ج]- د دنیا د ټولونه زیات عجیبه او حېرانوونکي اووۀ څیزونه دا په دوه ؤ زمانو کښې وېشلے شوي دي. یو زړې زمانې اووۀ عجائبات او بل د نوې زمانې اووۀ عجائبات.

**عجائبه** :- (عَ+جا+ئے+بَ)-[و ــــ عجیبه]

ناځابه دوه مشتاق چې سره ووینې په سترګو
تر دا به بله نۀ وي په جهـــان کښې عجائبه (خوشحال)

**عجب** :- (عَ+جَ+بْ)-[ع-صف مذ-مؤ:ه]- (۱) نوے- عجیبه- نادر. (۲) د نارینه ؤ په نومونو کښې هم استعمالېږي.

**عجب که** :- (د استعجاب کلمه ده. عجبه ده. نامکنه ده.

که کل جهان خوبان شي هم واړه محبوبان شي
عجب که لاپیدا شي یــــــوه تا غوندې زیبا (خوشحال)

**عُجب** :- (عُ+جُ+بْ)-[ع-اس-مذ]- تکبر- لوئي- غرور- ویاړ- فخر- ویاړنه- تاڼ.

**عُجب کول** :- (غرور کول- لوئي کول- کبر کول- فخر کول- ویاړ کول. تاڼ کول- ویاړل.

تـــر عــــاصي نه لابتر هغه عابد دے
چې په خپل طاعت به عجب یا به ناز کا (خوشحال)

**عجب کوونکے** :- (غرور کوونکے- مغروره- لویي کوونکے- ویاړونکے فخر کوونکے.

**عجب خان** :- (عَ+جَ+بْ+خا+نْ)-[اس مع]- یو نومیالے او مېړنے پښتون په قام افریدے وۀ. د پېرنګیانو په فوځ کښې نوکروۀ. د یوې بې عزتۍ بدل اخستلو دپاره ئې یو میمه مس ایلس غېرې علاقې ته وتښتوله- هلته ئې ډېره په عزت او ارام وساتله. اخر ئې د پېرنګیانو ډېرو کوښښونو او محمود اخونزاده سره د جرګو مرکو نه پس بېرته ور وسپارله.

**عجب خېل** :- (عَ+جَ+بْ+خېل)-[اس-مع]- د زېرکیو څانګه ده. (زېرکي ملي زاد) داوړ دي.

**عجب خېل** :- (عَ+جَ+بْ+خېل)-[اس مع]- د دېمه پال څانګه ده. پنې دي.

**عجبه** :- (عَ+جَ+بَ)-[صف-مو]- د ((عجب)) تانیث دے.

**عجبه تماشه ده!** :- (داسې تماشه یا منظره وغېره ده، چې په لیدلو ئې سړے حېرانه کېږي. نوے کار دے. نوې پېښنه ده.

**عجز** :- (عَ/ عِ+جْ+زْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) عاجزي- عاجز کېدنه- پاتې اتلنه- لاچاري- کمزوري.(۲) ماتې- شکست- مغلوبي. (اصلاً د عین زور سره دے).

**عجز کول** :- (عاجزي کول- خاکساري کول- منت زاري کول.

**په عجز سره** :- (په عاجزۍ سره- په خاکسارۍ سره.

**خپل عجز منل** :- (خپله کمزوري منل- خپله ناتواني تسلیمول.

**د عجز اظهار کول** :- (خپله) عاجزي څرګندول- د خپلې کمزورۍ اعتراف کول.

**عجز** :- (عَ+جُ+زْ)-[ع-اس-مذ]- شا- ورستنۍ حصه- کوناټي.

**عجلت** :- (عُ+جَ+لَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: ونه]- تادي- جلتي- تلوار- بېړه

**عجلت کول** :- (تادي کول- تُندي کول- بېړه کول- تلوار کول.

**په علجت سره** :- (ــــ+س+رَ)- په تادۍ- په تندۍ- په تلوار.

**د عجلت نه کار اخستل** :- (و ــــ عجلت کول.

**عجم** :- (عَ+جْ+م)-[ع-حمص]- په توري یا حرف باندې نقطې لګول. دا لفظ په پښتو کښې د ځینو توریو د وضاحت دپاره د ((معجمه)) په شکل کښې استعمالېږي- یعنې نقطو واله- هغه توری چې نقطې لري.

**عجم** :- (عَ+جَ+مْ)-[ع-اس]- هر هغه ملك چې د عربو د ملك نه علاوه وي- خاص طور سره ایران او توران. (۲) ایرانے. (د فارس خلق به پخوا د عربو په ژبه نۀ پوهېدل. ځکه نو په خبره چې به پوهه نۀ شول نو چپ به پاتې شول. له دې کبله عربو د غو خلکو ته عجم (یعنې ګونګیان) وئیل شروع کړل. بله توجیهه ئې دا هم کولے شي چې د اسلام نه اګاهو د عربو شاعري دومره اوچتې درجې ته رسېدلې وه، چې د خواوشا (خصوصاً فارس یا ایران په ملك) کښې نۀ وه. نو ځکه دوي به غېر عربو خلکو ته عجم یعنې ګونګیان وئیل. (اولنۍ توجیهه زیاته صحیح ده).

**عجمي** :- (عَ+جَ+مي)-[اس-صف]- (۱) د عجم اوسېدونکے- عجم سره تعلق لرونکے- ایرانے- ایرانی. (۲) ګونګے- په عربۍ نۀ پوهېدونکے.

**عجمیت** :- (عَ+جَ+مي+یَ+تْ)-[ع-اس-مذ]- غېر عربیت.

**عجوبه** :- (عَ+جُو+بَ)-[ع-اس-مو-ج:عجوبې]- عجیبه- نوے څیز- داسې څیز چې په کتو یا اورېدو ئې سړے حېرانه شي.

**عجوز** :- (عَ+جُو+ز)-[ع-اس-مو-ج: عجوزې]- (۱) بوډۍ- زړه ښځه- ضعیفه ښځه. (۲) مجازاً- دا فاني دنیا. (ځینې وخت د پښتو د قواعدو تر لاندې د تانیث دپاره ورسره ((ه)) هم لګولے شي- خو ((عجوز)) پخپله هم مونث دے مذکر نۀ دے).

**عجوسي** :- (عَ+جُو+سي)-[اس مع]- د بدین زئیو څانګه ده. (بدین زئ- د عبدالله زئ- د سنزر خېل کاکړ دي.

**عجیب** :- (عَ+جِي+بْ)-[ع-صف مذ-مؤ: عجیبه]- نوے- نادر- داسې څیز چې په لیدو یا اورېدو ئې بني ادم حیران شي. حیراونکے څیز- عُجب واله- د معمول نه خلاف.

**عجیب الخلقت** :- (ــــ+بُ+لْ+خِ+لْ+قَ+تْ)-[ع-تر-صف]- هغه څیز چې له پېداوښته پکښې څۀ نوے یا حیرانوونکے خصوصیت موجود وي. په عجیبه شکل و صورت وغېره کښې پېدا کړے. د عام پېداوښت نه خلاف.

**عجیب الشکل** :- (ــــ+بُ+ش)+شِ+كَ+لْ)-[ع تر-صف]- عجیبه شکل لرونکے- داسې څیز چې شکل و صورت ئې د عام انداز نه په بېل رنګ وي.

**عجیبه** :- (عَ+جي+بَ)-[ع-صف-مو]- د ((عجیب)) تانیث دے. نادره- حیرانوونکې خبره.

**عجیبه انصاف دے** :- (مجازاً بې انصافي ده. دانصاف خلاف فیصله یا خبره ده.

**عجیبه خبره ده** :- (حیران کوونکې خبره ده. نوې شان معامله ده. د معمول نه خلاف خبره یا معامله یا پېښنه ده.

**عجيبه داده چي** :- (جمله)- د کومې عجيبه او د حيرانتيا خبره کولو په موقع وئيلې شي.

**عجيبه کار دے**:- (و____ عجيبه خبره ده).

**عجيبه شے/ څيز دے چي** :- (جمله)- د کوم عجيبه يا د حيرانتيا پيدا کوونکے څيز په حقله د بيان په موقع وئيلے شي.

**عدالت** :- (عَ+دا+لَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج. عدالتونه]- (۱) دعدل حالت يادکار برابرے- (دواړه غاړې) برابرول- انصاف- نياؤ. (۲) هغه ځاے چرته چي انصاف کولے شي. کچهرى- د نياؤ ځاے. (هر کله چي څۀ جګړې يا تنازعې وغيره کېنې ظلم کوونکے- مظلوم سره برابرولے شي ځکه ئې دغه نوم شۀ).

**عدالت چلول** :- (۱) د جګړو او شخړو فېصلې کول- منصفي کول. (۲) لکه د عدالت د حاکم حکم.

**عدالت کول** :- (عدل کول- انصاف کول- د جګړو او تنازعو، انصاف سره فېصله کول- کچهرى کول- يا په کچهرى کښې د مقدمو فېصلې کول.

**عدالت لګول** :- (۱) دعدالت د حاکم- دعدالت په کرسۍ کېښناستل. (۲) د شکايتونو د اورېدولو دپاره د مجاز افسر (مجسټرېټ وغيره) کار شروع کول.

**عدالت له تلل** :- (د څۀ جګړې يا تنازعې وغيره د فېصلې دپاره قاضي يا مجسټرېټ وغيره ته انصاف درخواست کول.

**دسېشن عدالت** :- (سي+ش+نْ+__)- د سېشن جج کچهرى- هغه عدالت چرته چي سنګينې او درنې مقدمې فېصله کېږي. عموماً ورته سېشن کورټ وائي.

**ديواني عدالت** :- (دي+وا+نِي+__)- هغه عدالت يا کچهرى چرته چي مالي جګړې او تنازعې فېصله کولې شي. (د فوځداري عدالت په مقابله کښې).

**فوځداري عدالت** :- (فَو+ځ+دا+ري+__)- هغه عدالت يا کچهرى چرته چي د جنګ، جګړو، مرګ ژوبلې وغيره مقدمې فېصله کولې شي. (د دېواني په مقابله کښې).

**فوځي عدالت** :- (فَو+زِي+__)- هغه عدالت په کوم کښې چي فېصله کوونکي د عامو قاضيانو يا منصفانو يا ججانو وغيره په ځاے د فوځ افسران وي.

**قومي عدالت** :- (قَو+مِي+__)- هغه عدالت چي د قوم د طرفه مقرر شوي غړي د کومې مقدمې فېصله کوي.

**لوے عدالت** :- (لو+ئې+__)-[عپ تر-اس-مذ]- مجازاً- خداے پاك عدالت. د قيامت د ورځې عدالت.

**مذهبي عدالت** :- (هغه عدالت په کوم کښې چي فېصله کوونکي مذهبي عالمان وي- او د مذهبي قوانينو (شرعي) مطابق فېصلې کوي.

**دعدالت خرڅ-خرچه** :- (__+خَ+رْ+تْ/سَ)-[عپ تر-اس-مذ-ج.ونه]- هغه خرڅونه چي د عدالت له رويه تسليم کېدے شي او بيلونکے فريق مخالف فريق ته ادا کوي.

**دعدالت سپي** :- (__+سْ+پِي)-[عپ تر-اس-ج]- د عدالتونو هغه ملازمان څوك چي د رشوت دپاره دعوىٰ کوونکو پسې شي او لکه د سپو ئې هله پرېږدي چي څۀ ترې وصول کړي.

**عدالتي** :- (عَ+دا+لَ+تي)-[عف تر-صف]- عدالت يا کچهرى سره متعلق. عدالت يا کچهرى ته منسوب. د عدالت. لکه: عدالتي کاروائي.

**عداوت** :- (عَ+دا+وَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج.ونه]- د شمنى- ميرځي- ميرځمني- مخالفت- بغض- کينه.

عبادت لـه غزازيله عـــداوت دے
د عابد رکوع سجود حاصل جهاد شي (حافظ)

**عـدت** :- (ع+دْ+دَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج.ون]- (۱) شمېر- شمار- شمارنه. (۲) (شرع) هغه خاص ميعاد- په کوم کښې دننه چي يو طلاقه شوې ښځه بله نکاح نه شي کولے- (د دې ميعاد د تېرلونه پس د هغې خوښه ده که بله نکاح کوي او که نۀ کوي) د طلاقې شوې ښځې عدت، دهغې درې حېضونه يا درې مياشتې دي. (په دې کښې ئې نان نفقه په خاوند وي. کومه ښځه چي کونډه شوې وي (يعني خاوند ئې مړ وي) نو د هغې عدت څلور مياشتې او لس ورځې دي. او د حاملې ښځې (چي په رحم کښې ئې بچے وي) دپاره عدت د بال بچ د راړولو تروختـه دے. (زياتي معلومات او اختلاف وغيره د فقې کتابونو کښې وګورئ).

**په عدت کښې کېناستل** :- (د عدت ورځې د شرعې مطابق تېرول.

**عدد** :- (عَ+دَ+دْ)-[ع-اس-مذ-ج.ونه-عرج: اعداد]- شمار- شمېر- هندسه- تعداد.

**اعشاري عدد** :- (اِ+عْ+شا+رِي+__)-[اس-مذ]- هغه عدد يا هندسه چي پکښې د يو (صحيح) لسمه، سلمه وغيره برخه شامله وي.

**تام عدد** :- (تا+مْ+__)-[و_____ صحيح عدد].

**صحيح عدد** :- (ص+حِي+حْ+__)- هغه شمېر يا شماره چي پوره وي. يعني کسر پکښې نۀ وي.

**عددي** :- (عَ+دَ+دِي)-[صف]- عدد (هندسې يا شمېر) سره تعلق لرونکے- عدد ته منسوب.

**عـــدل** :- (عَ+دَ+لْ)-[ع-اس-مذ-ج.ونه]- (۱) برابـري- مساوات. (۲) انصاف- نياؤ- داد.

دا ئې کومه دلسوزي عدل و انصاف دے
چـې لاګل شګفته نۀ وي بيا ئې خور کا
(حميد)

**عدل کول** :- (۱) انصاف کول- نياؤ کول- انصاف سره فېصله کول. (۲) د افراط او تفريط نه بچ کېدل- د مېنځ لار اختيارول.

**عدل کېدل** :- (انصاف کېدل- انصاف سره فېصله کېدل.

**د عدل اعتدال لرل** :- (د عدل منځومانه لار اختيارول. عدل کول -انصاف کول.

د هغۀ بادشاه به مونځ د غاړې طوق شي
چـې دے نه لـري د عدل اعتدال (خوشحال)

**عدليه** :- (عَ+دْ+لِي+يَ)-[ع-اس-مو-ج.ئې]- د عدل سره متعلق- د انصاف سره نسبت لرونکے.

**عـدلي** :- (عَ+دْ+لِي+يې)-[اس-ج]- (۱) د «عدليه» جمع ده. (۲) د «عدليه» اضافي او مجروري وغيره شکل دے.

**عـدم** :- (عَ+دَ+مْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) نيشت والے- نېست «بودنه» نيشتيا- ناموجودګي- وجود نۀ لرنه. (۲) هغه زمانه چي د څۀ څيز وجود نۀ وُ.

ب بهر چي هغه نور شۀ
د عدم تر کومي دور شۀ (حافظ)

**عدم ته تلل** :- (مجازاً مړ کېدل- خومے کېدل.

**د عدم لار** :- (__+لا+رْ)-هغه لار چي «عدم» ته ځي- يعني چي بني ادم پکښې نيشت شي. د مرګ لار- مرګ- مړکېدنه.

**عـدن** :- (عَ+دَ+نْ)-[ع-اس-مـذ]- (۱) پـاتې کېـدل- چرتـه قيـام کـول- تـل پـاتې کېدل. (۲) د بهشت باغونه چرته چې به بني ادم تل ترتله اوسي.

**عـدن** :- (عَ+دُ+نْ)-[اس-مـذ]- د جنت بـاغ- وئيلے شي چې حضرت ادم عليـه السلام او حوا بي بي اول اول هلتـه اوسېدل، بيـا لـه دغـه باغـه زمکې تـه راکوز کړے شول، ځکه چې هغوي د شېطان په لمسه د هغې بـوټي مېـوه خوړلې وه د کومې نه چې خداے پاك منع کړي وو.

**عـدن** :- (عَ+دَ+نْ)-[اس-مع]- د عربـو سـهېل پـه قبلـه گـوټ کښـې يـو مشـهوره ښاريه او لوے بندر- چې د بحيرۀ عرب او د بحيرۀ قلزم ترمنځه واقع دے، ځکه ډېر اهميت لري.

**عدنان** :- (عَ+دْ+نا+نْ)-[اس-مع]- د حضرت اسماعيل عليـه السـلام پـه اولاد کښې د يو سړي نوم دے. د حضور پاك صلى الله عليـه وسـلم شجره دغې عدنان ته رسي.

**عدوّ** :- (عَ+دُو)-[ع-اس-مذ]- (۱) دښمن- ميرځمن- مخالف- بـد غوښـتونکے- بدخواه. (۲) (شاعري) رقيب- د يو کس د معشوقې بل مئين.

**عدوان** :- (عُ+دْ+وا+نْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) دښمني- ميرځمني- مېرځي. (۲) ظلم- جور- زياتے.

**عـدول** :- (عَ+دُو+لْ)-[ع-صـف]- د عـدل خاونـد- د اعتمـاد او اعتبـار وړ اعتباري- معتمد.

گربوان لوند په گرمو اوښکو گـونه زېړه
د عاشق په مينه دوه گواهان عدول شته (حافظ)

**عدول** :- (عُ+دُو+لْ)-[ع-اس-مذ]- دلاړې نه گرځېدنه- مخ گرځونه- شټ اړونه. انکار- اعراض- نۀ منل.

**عديل** :- (عَ+دي+لْ)-[ع-صف-مذ-مؤ:ه]- (۱) ساري- برابر- يوشان- همسر- مساوي- هم وزن- هم نظير. (۲) (ع) کوم کسان چې په کجاوه کښې يو خوا بل خوا کښېني په هغو کښې هر يو د بل عديل بللے شي. (۳) عدل کوونکے- عادل- انصاف دار.

**عديم** :- (عَ+دي+مْ)-[ع-صف-مذ-مؤ:ه]- معدوم- ورك- ناپيدا- نيشت- نابود- ناياب.

**عديم الفرصت** :- (ـــ+مُ+لْ+فُ+رْ+صَ+تْ)-[ع تر-صف-مذ-مؤ:ه]- هغه چې فرصت نۀ لري- نا اوزگاره چې هر وخت په کار کښې بوخت وي.

**عديم المثال** :- (ـــ+مُ+لْ+مِ+ثا+لْ)-[ع تر-صف-مذ-مؤ:ه]- هغه چې مثال نۀ لري- بې مثاله- بې نظيره- لاثاني.

**عـديم الوجـود** :- (ـــ+مُ+لْ+وُ+جُو+دْ)-[ع تر-صف]- هغـه چې وجود نۀ لـري- ناياب- ورك- کمياب- نۀ پېدا کېدونکے.

**عذاب** :- (عَ+ذا+بْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) شکنجه- په شکنجه کښې گېرۀنه. (۲) تکليـف- دُوك- درد- ربـړ- اذيـت- مصـيبت.(۳) د ثـواب ضـد- سـزا (دگناه).

**عذاب ثواب** :- (سزا او انعام- بدي او نيکي- ښۀ او بد- لکه ددې عذاب ثواب ستا په غاړه. پښتو کښې عموماً ((ازار گناه)) وائي.

**عذاب نازلېدل** :- (د خداے پاك د طرفه په يو قوم يا اولس وغېره ځۀ اسماني افت راتلل.

**په عذاب کول** :- (تکليف ور رسول- دُکھ وررسول- په تکليف کښې اچول.(د استعمال د کثرت له کبله ((يا خرابول)) هم وائي- ځکه چې د ((ع)) اواز په پښتو عموماً سپکوالے يا ښخي غورځولے شي)

**عذابول** :- (ع+ذا+بَ+وُ+لْ)-[مص-مت]- په تکيف کښې اچول- دکھ ورکول- کړان يا مصيبت ورپېښول. (عموماً د ((په)) توري سره راځي).

**عذابېدل** :- (عَ+ذا+بې+د+لْ)-[مص-لا]- په تکليف کښې راتلل- تکليف يا دُکھ پورته کول- خواري پېښېدل. (عموماً (په) حرف سره راځي).

**عذار** :- (ع+ذا+رْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- انگے- (اصلاً د عين زېر سره دے خو ځينې خلک ئې زور سره وائي، چې درست نۀ دے).

**گل عذار** :- (گُ+لْ+ـــ)- [عپ تر-صف-مذ-مؤ:ه]- هغه کس چې انگې ئې د گل په شان وي- ډېر ښکلے- مجازاً معشوقه- محبوب.

**عـذر** :- (عُ+ذْ+رْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- (۱) بهانـه- بانـه- حيلـه- پلمـه. (۲) معذرت- معافي. (۳) لاچاري- مجبوري.(۴) تعزيت- په غم يا ماتم کښې شريکېدنه.

**عذر بانه** :- (ـــ+با+نَ)-[عپ تر-اس-مو-ج:نې]- حجت يا بهانه- انه بانه.

**عـذر پېش کول** :- (۱) خپـل دليـل يا حجت وړاندې کول. (۲) خپله معـذوري وړاندې کول- خپله مجبوري څرگندول.

**عذر جوړېدل** :- (بانه جوړېدل- حيله په لاس راتلل.

مري دې نه کړجن د ښوري
زما به عذر پـوري جوړي (غاړه)

**عـذر خواه** :- (ـــ+خ+وا+ه)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان]- (۱) عـذر غوښـتونکے- عـذر وړانـدې کـوونکے- معـذرت کـوونکے- معـافي غوښـتونکے.(۲) د مـړي پـه غـم کښـې شـريکېدونکے.(۳) خپلـه معـذروي يـا مجبـوري څرگندونکے.

**عذر خواهي** :- (ـــ+خ+وا+هي)-[عپ تر-اس-مو)-عذر غوښتنه- عـذر وړانـدې کونه- خپله مجبوري ښودنه.

**عـذر خـواهي کـول** :- (۱) عـذر وړانـدې کـول- معـذرت کـول- خپلـه معـذوري ښکاره کول- خپلـه مجبوري ښـودل.(۲) د مړي پـه غـم کښـې شـريکېدل- عذر له تلل- ماتم پُرسي کول.

**عذر داري** :- (ـــ+دا+ري)-[عف تر- اس-مو]- عذرلرنه- اعتراض- دعوىٰ- حجت- دليـل.

**عذر راوړل** :- (مص تر)- عذر وړاندې کول- خپله معذورتيا څرگندول.

**عذر غوښتل** :- (مص تر)- حجت غوښتل- دليل غوښتل.

**عذر قبلول** :- (د چا معذرت صحيح گڼل- مجبوري يا معـذرت منـل- دليـل يـا بهانه صحيح تسلمول.

**عذر کول** :- (۱) معـذرت کـول- معـافي غوښـتل. (۲) د مړي پـه غـم کښـې شريکېدل- د مړي دپاره پـه دعـا کښـې شـريکېدل- لاس پورتـه کـول (۳) د مېلمه وغېره خدمت کـول- افشـار پـه کـول بانـدې) دخدمت نـه پس مېلمه رخصتول.

**عذر له تلل** :- (د چا په مرگ د غمرازۍ دپاره تلل.

**عـذر معـذرت** :- (ـــ+مَ(ع)+ذِ+رَ+تْ)-[عـف تـر-اس-مـذ]- دواړه لفظونـه تقريباً هم معنىٰ دي. دوېم لفظ د تاکيد دپاره راځي. عذر وړاندې کونه- معافي غوښتنه- خپله معذوري او مجبوري څرگندونه.

**عذر مند** :- (ـــ+مَ+نْ+د)

**عـذر مـن** :- (ـــ+مَ+نْ)-[عـپ تر-صف-مـذ-مـؤ:ه]- عـذرلرونکے- معـذوره مجبوره.

**عذر وړاندې کول** :- (و___عذر پېش کول.

**عذراء** :- (عَ+ذْ+را)-[ع-اس-مو-ج:گانې]- (۱) پېغله- ځوانه جينۍ. (۲) (اس مع) د يو عشقي رومان هيروئينه- د وامق معشوقه. (۳) حضرت فاطمه

الزهراؓ ته وائي. (۴) د مسلمانانو ښځو نوم. (۵) ښکاره- څرګند- صفا.

کـــه تهٔ لکــه عذرا ئي
زهٔ هم کم تر وامق نهٔ یم (خ خ خ)

**عـــذوبت** :- (عَ+ذُو+بَ+تْ)-[ع-اس-مـــذ-ج:ونـــه]- خـــوږوالے- خونـــد- خوندورتوب- د اوبو خوږوالے- او خوندورتوب- شیریني.

په تشبیه او په تمثیل په نزاکت کښې
عذوبت مــې د خبرې چند درچند کړ (خوشحال)

**عـراده** :- (عَ+(ر)+را+دَ)-[ع-اس-مـو-ج:عـرادې]- پخـوا د جنګ یـوه الـه وه- د مچغنې په اندزه، چې په دښمن به ئې کاڼي ورول.(۲) هغې ګاډې ته وائي چې دوه پا ئې لرې او به پرې خېژولے شوې. (۳) د توپو د شمېر دپاره استعمالېدۀ- لکه مثل عـرادې تـوپې- اوس صرف د عـرادې لفظ هم د توپې دپاره استعمالولے شي.

**عراق** :- (ع+را+قْ)-[اس-مع]- د عراق اصل معنٰی د سیند غاړه ده. هغه ملك یا ملکونه ترې مراد دي، چې د کوم سیند په غـاړه وي خو اوس هغې ملك ته وئیلے شي- کوم چې د دې سیند او د فـرات د سیند په څنډو اباد دي- دې ته عراق عرب وائي. پخوا به هغې ملك ته هم عراق وایـه شـۀ کوم چې د جېحون سیند په څنډو پروت ؤ- چې پکښې اصفهان او خراسان وغېره شـامل وو. او ورتـه بـه ئې ((عـراق عجم)) وې- اوس فقـط بـره ذکر شوې ملك تـه عـراق وائي، چې بغـداد ئې دارالحکومت دے. (۲) پـه موسیقۍ کښې د یو ((راګ)) یاد مقام نوم دے- چې د وئیلو (یا د غږولو) وخت ئې د ځانبت وخت دے.

**عراقي** :- (ع+را+قِي)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان]- (۱) د اسونو یـو قسم چې اصلاً په عراق کښې پیدا کېدل- د تازي اس په شان ډېر قیمتي او د قدر وړ ګڼلے شي- ځینې دا هم په عربي یا تازي اسونو کښې شمېرې لکه:

خر چې کم بها دے عراقي تازي به نهٔ شي (حافظ)

(۲) عراقي سره تعلق لـرونکے- د عـراق اوسېدونکے- د عـراق ملك تـه منسوب.

**عـرب** :- (عَ+رَ+بْ)-[اس مـع]- (۱) د هغې مشـهور ملك نوم دے چې مکه او مدینه وغېره ښهرونه پکښې اباد دي. حضور کریم صلی الله علیه وسلم په مکه کښې پیدا شـوے ؤ. او د اسلام کامیابي ئې د مدینې د ښـهر نـه شروع شوې وه. دا ټـو ملك مقدس ګڼلے شي. لغوي معنٰی ددې لفظ بیابان او د صحرا ده. په دغه ملك کښې سیند نشـته او اکثره برخه ئې صحرا (شګلوړې میدانونه) دي، ځکه ئې دغه نوم شـۀ. ((عـرب)) معنٰی د ښـهر اوسېدونکے (ښـهرے) هم ده. ځینې وائي چې دا نـوم د یمن د یـو پخواني بادشاه یعرب بن قحطان په نوم اېښودے شـوے دے. چا چې دا ملك اباد کړے ؤ. (۲) ددې ملك (عـرب) اوسېدونکے وګړے. دا لفظ د ((اعرابي)) ضد دے.

**عرب لیګ** :- (ـــــ+لِي+ګْ)-[اس مع]- یو جماعت چې پکښې د عربو تقریباً ټول ملکونـه او مملکتونـه شامل دي- او ددې ملکونـو د خبر ښـېګړې کارونـه کوي.

**سعودي عـرب** :- (سَ+عُـو+دِي+ــــ)-[اس-مـع]- پـه عربستان کښـې یـو لـوے مملکت چې مکه معظمه، مدینه منوره، جده، طائف او ریاض وغېره ښهرونه پکښې دي- د دې ملك بنیاد سطان عبدالعزیز ابن سعود اېښـے ؤ- ځکه دا نوم پرې کېښودے شۀ.

**عاربه سعودي** :- (عا+رِ+بَ+ــــ)

**عربـاه سـعودي** :- (عَ+رْ+بـا+(ه)ــــ)-[ع-تر-اس-جم]- خـالص عـرب- د صحیح نسل عرب.

**مستعربه عرب** :- (مُ+سْ+تَ+عْ+رِ+بَ+ـــ)

**متعربه عرب** :- (مُ+تَ+عْ+رِ+بَ+ــــ)-[ع-تر-اس-جم]- د عربو هغه خلك چې سوچه عرب نهٔ وي- بلکه وروستو ئې عربو سره ګډون شوے وي.

**د عرب بحیره** :- (ــــ+بُ+حَـ+رَ)-[اس مع]- د مشهور سمندر نوم- بحیرۀ عرب چې د عربو د ملك (عربستان) سهېل طرف ته دے.

**عربـان** :- (عُ+رْ+بـا+نې)-[عف-تر-اس-ج]- د عرب جمع ده. د عرب خلك- عرب وګړي- دعربو بدوان.

**عرب خېل** :- (عَ+رَ+بْ+خېل)-[اس-مع]- د غېبي خېلو وړه څانګه ده. (او غېبي خېل د بهرام کاخېل(بر راڼي زي)-(اکوزي) یوسف زي دي.

**عربده** :- (عَ+رْ+بَ+دَ)-[ع-اس-مو-ج:دې]- (۱) جنګ- جګړه. (۲) فساد- فتنه.

**عربده کول** :- (۱) جنګ جګړه کول. (۲) بدخوي بدنیتي کول. (۳) بدمستي – شور شغب کول.

څوك خمونه تشوي مستي ئې نهٔ وي
څـوك د میکو عربده کا په څو ګوټه (خوشحال)

**عـرب زی** :- (عَ+رَ+بْ+زَ+یْ)-[اس-مـع]- د محمـد زئیـو څانګه ده.(محمد زي- احمدزي- ببل خېل- موسٰی زي پنې دي.

**عـرب زي** :- (عَ+رَ+بْ+زِ+ي)-[اس-مـع]- د سلیمان خېلو څانګه ده. (سلیمان خېل- دوت خېل- مندوخیل دي.

**عربستان** :- (عَ+رَ+ب+سْ+تا+نْ)-[اس-مع]- د عربو ملك. وـــــ عرب.

**عربـه** :- (عَ+رَ+بَ)-[ع-اس-مـو]- د ((عـرب)) تانیث دے. عـرب ښـځه د عـرب اوسېدونکې یا د عربو د نسل ښځه.

**عربۍ** :- (عَ+رَ+بَ+ۍ)-د ((عربي)) تانیث دے.

**عربي** :- (عَ+رَ+بِي)-[ع-صف-مو]- (۱) د عرب ملك سره تعلق لرونکے عـرب تـه منسوب.(۲) د عرب د خلکو ژبه (۳) عربي- تازي اس- چې په دنیـا کښـې مشهور دے.

**عربے** :- (عَ+رَ+بَے)-[اعپ تر-اس-مذ-مؤ: عربۍ]- د عرب اوسېدونکے وګړے- اصلاً د عرب اوسېدونکے.

**عربیات** :- (عَ+رَ+بِي+آ+تْ)-[ع-اس-ج]- د عربۍ ژبې ادب- یـا ژبـه پوهنـه. د عربۍ علمونه.

**عربي خېل** :- (عَ+رَ+بِي+خېل)-[اس-مع]- د سنزرخېلو څانګه ده- کاکړ دي.

**عربیه** :- (عَ+رَ+بِي+یَ)-[ع تر-صف]- د عربو ملك سره تعلق لرونکے- د عربو خلکو ته منسوب- د عربۍ ژبې ته منسوب.

**عرس** :- (عُ+رْ+سْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) د پیرانو د بزرګانو د مړینې په ورځ (کال په کال) فاتحه کول (۲) د پیرانو بزرګانو د وفـات پـه ورځ (کال په کال) خاص دستوره، چې پکښې د فـاتحې نه عـلاوه د سماع (موسیقۍ) مجلس هم شامل وي. (اصلاً د دې معنٰی دوادۀ یا د نکاح د موقعې یا ولیمې دعوت دے. خو وروستو په برنو معنو کښې ئې استعمال شروع شۀ. ځکه چې د پیرانو بزرګانو پـه حقله خیـال دے چې د هغوي وفات یو قسم لـه عروسي (د وادۀ) خوشحالي ده- ځکه دا د دغو بزرګانو د وفات د ورځې د دستورې نوم وګرځېد).

**عرس کول** :- (د چا بزرګ ولي یا پیر مرګ په ورځ دفاتحې او د سماع وغېره دستوره کول.

**عـرش** :- (عَ+رْ+شْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- (۱) چـت- سـقف. (۲) تخت. (۳) د خدا ے پاك تخت. (هرکله چې خدا ے پاك وجود نهٔ لري ځکه د هغه د

ناستې دپاره د تخت يا د کرسۍ وغېره ضرورت هم نشته. ځکه دې نه مراد ډېر زيات لوړوالے يا اوچت والے دے. چرته چې زمونږ ادراك او پوهه نشي رسېدے. ځينې وائي، چې دا نهم اسمان دے. ځينې ئې اتم اسمان ګڼي. او وائي چې د سرو ياقوتو نه جوړ شوے دے).

**عرش اعظم** :- (د ټولونه لوے عرش- مراد ترې د خدائے پاك تخت دے.

اسمانونه په دا شمار په کوم حساب دي

چې قايم عرش اعظم ستا په حطيم دے (سعيد خټك)

**عرش اکبر** :- (ـــ+اَ+كْ+بَ+رْ)-[عف تر-اس-مذ]- لوے تخت- مجازاً د بني ادم زړۀ.

**عرش الله** :- (د الله پاك عرش- مراد ترې د مؤمن زړۀ دے.

قلب د مؤمن ګوره عقلب په عرش الله دے

زار د ازار جويو، چې د زړۀ په بازار بلوسي

(حافظ)

**عرش معليٰ** :- (ـــ+مُ+عَ+لْ+لا)-[ع تر-اس-مع]- اوچت لوے تخت مراد ترې د خدائے پاك تخت دے.

**دعرش نه تر فرشه پورې** :- (د زمکې نه واخلې تر عرشه پورې مجازاً هر ځائے- د زمکې نه تر اسمانه پورې.

**عرشه** :- (عَ+رْ+شَ)-[عف تر-اس-مؤ-ج:عرشې]- (۱) د سمندر د جهاز د ټولونه پورتنۍ حصه- چې د تختو وغېره ؤ نه جوړ يو لوے تخت يا وېر مېدان وي. دا په جهاز کښې د سفر دپاره د ټولونه کمه او ارزانه درجه وي. (۲) د منبر په پوړو کښې د ټولو نه برنۍ پوړۍ.

**عرصات** :- (عَ+رَ+صا+تْ)-[ع-اس-ج]- د ((عرص)) جمع ده. مجازاً هغه لوے وېر مېدان چرته چې به د قيامت په ورځ د مخلوق سره حساب کتاب کولے شي. مجازاً قيامت.

په عرصات به غـم خـورګي د ګنهګارو څوك کا

څو شفاعت ئې ستا د مات زړونو کوشېر نۀ شي (حافظ)

**عرض** :- (عَ+رْ+ضْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) د ((جوهر)) نقيض دے. هغه چې په خپل ذات قايم نۀ وي. په بل باندې اړه لري. لکه ((رنګ)) چې په کپړه- کاغذ وغېره اړه لري. (۲) هغه ناجوړتيا کومه چې د بلې کومې ناجوړتيا له کبله ولګي. لکه د تبې په وجه سرخوږے- د کوم درد په وجه تبه وغېره.

عشق ئې درست له عناصرو سره ګډ کړ

هسې نه چـې تش برسېره دے عرض (خواجه محمد)

**عرض** :- (عَ+رْ+ضْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه-اعراض]- هر هغه څيز چې واقع شي- حادثه- عارضه- بيماري.

**عرض** :- (عَ+رْ+ضْ)-[ع-اس-مذ]- ناموس- ابرو- پت- ست (قندهار) شهرت- نوم. (کم کوز استعمالېږي).

**عـرض** :- (عَ+رْ+ض)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- (۱) پلن والے- سور- خوروالے (۲) بيان- اظهار- التماس.

**عرض** :- (عَ+رْ+ض)-[ع-اس-مذ]- دعرض بلد په معنیٰ کښې راځي. وـ عرض بلد.

**عـرض او طـول** :- (ـــ+(ضـو)+طو+لْ)-[عـف تـر-اس]- پلـن والـے او اوږدوالـے. (عموماً طول و عرض وئيلے شي).

**عرض بلد** :- (ـــ+بَ+لْ+دْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]- هغه يوسل او اتيا فرضي خطونه (۱۸۰) چې د زمکې نه چارچاپېره د خط استوا سره متـوازي رابـنکلي شـوي دي. د دې (فرضـي) خطونـو او د طـول بلـد (فرضي) خطونو په مدد سره د زمکې په مخ د يو شهر يا د يو مقام صحيح ځائے معلومولے شي.

**عـرض بېګـي** :- (ـــ+بې+ګـي)-[عـف تـر-اس-مـذ]- د پخوانـو بادشـاهانو او حاکمـانو پـه دربـارونو کښـې يـوه عهـده دار- د چـا کـار چـې د خلکـو عرضيانې او درخواستونه بادشاه ته وړاندې کول وو.

**جنوبي عرض** :- (جُ+نو+بي+ـــ)-[ع ف-تر-اس-مذ]- هغه عرض بلد چې د استوا د خط نه سوېل طرف ته وي. (د دې خطونو شماره د استوا د خط نه شروع کېږي).

**شمالي عرض** :- (ش+ما+لي+ـــ)-[عف تر-اس]- هغه عرض بلد- کوم چې د استوا د خط نه قطب طرف ته وي. (د دې خطونو شماره د استوا د خط نه شروع کېږي).

**عرض کول** :- (بيانول- عاجزۍ سره يا ادب سره وئيل- التماس کول.

**عـرض ګـو** :- (ـــ ګـو)-[عـف ترصـف-اس-ج:يـان]- عـرض کـوونکے درخواست کوونکے.

عرض ګويم ربه ستا و درګـاه پاك ته

پر مې مه کړې و دې دهر کينه ناك ته (حافظ)

**عرض لرل** :- (درخواست لرل- التماس لرل- (عموماً يو ((عـرض لرل)) وئيلے شي).

**عرضاً** :- (عَ+رْ+ضاً)-[ع-تف]- (۱) د پلن والي په لحاظ سره- پلن والي سره تعلق لرونکے. (۲) واقعاً- اتفاقاً. (۳) د درخواست په طور- د عرض کولو په طور.

**عرضه** :- (عَ+رَ+ضَ)-[عف تر-اس-مؤ]- (۱) بنکاره-څرګند. (۲) غاؤ. (۳) غاؤ کول.

**عرضه کول** :- (عرض کول- وړاندې کول.

په دار وار زما سلام ورته عرضه کړه

ورسره زما د لــــوريه څـو تسليمه (خوشحال)

**عرضـه کېـدل** :- (۱) بنـکاره کېـدل- څرګندېـدل- وړانـدې کېـدل- پـېش کېـدل. (۲) غاؤ کېدل.

**عرضي** :- (عَ+رْ+ضي)-[عـپ تر-اس-مو]- (۱) درخواست- پـه ادب يـا عـاجزۍ سره ليکلے شوے التماس. (۲) په عدالت کښې دعویٰ. (۳) اتفاقي.

**عرضـي انجېسـتل** :- (۱) د چـا مظلـوم يـا د فريـادي ليکلـې شـوې درخواست وصـولول. (۲) د نـوکرۍ يـا دبـل څـۀ ضـرورت دپـاره لـيکلے شـوے درخواست انجېستل.

**عرضي کول په چا** :- (عدالت له د چا د ظلم زياتي وغېره خلاف درخواست ورکول- مقدمه دائر کول.

**عرضي نويس** :- (ـــ+نَ+وي+سْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:نويسان]- هغه کس چې کـار کسـب ئـې د خلکـو دپـاره درخواسـتونه ليکـل وي. داسـې کسـان عموماً په خاص اجازت په کچهرو کښې ناست وي.

**عرضي ورکول** :- (درخواست ورکول.

**عرعر** :- (عَ+رْ+عَ+رْ)-[ع-اس-مذ]- غرئيزه سروه- د چېړونه. (۲) دا ونه ډېره نبغه او لوړه وي. ځکه شاعران ئې د معشوقې قد سره تشبيهه ورکوي- لکه قد عر عره.

دا څۀ قد او څۀ قامت دے

چې هم ګل دے هم عرعر (رحمان بابا)

**عرعره** :- (عَ+رْ+عَ+رَ)-[عپ تر-اس-مو]- د ((عرعر)) تانيث دے.

**قـدعرعـر** :- (هغـه کـس چـې قـد ئـې لکـه د عرعـر د ونـې نېـغ او لـوړ وي. د معشوقې قد دپاره د تشبیه په طور وائي. معشوقه.

**عرف** :- (عُ+رْ+فْ)- (۱) پېژندنه- شناخت- پېژندګلوي. (۲) د چا د اصل نوم په ځاے هغه نوم چې په خلکو کښې مشهور شي لکه: شینو. (۳) د خلکو دستور- رواج- (د شرعي په مقابله کښې).

**عرفا** :- (عُ+رَ+فا)-[ع-اس-مذ]- د ((عارف)) جمع ده. عارفان. حق شناسه خلک- حق پېژندونکي وګړي.

**عرفات** :- (عَ+رَ+فا+تْ)-[اس مع-مذ]- (۱) د یو مقدس مېدان نوم دے چرته چې حاجیان د حج په موقعه ایسارېږي او لبیک او نورې دعاګانې کوي- او د ماسپښین او مازدیګر مونځونه هلته کوي او بیا مکې ته ستانه شي. دا مېدان د مکې معظمې نه تقریباً دولس میله لرې دے. (۲) دغه ځاے په دې نوم یوه غونډۍ هم ده.

لـوړه پـوزه ئې غونډۍ د عرفات ده
د هرچا سوال پرې قبلېږي چې زاري کا (حافظ)

**عرفـان** :- (ع+رْ+فـا+نْ)-[ع-اس-مـذ]- (۱) پېژندنـه- شـناخت- واقفتیـا. (۲) معرفت- پېژندنه- د خداے تعالی معرفت. (۳) د مسسلمانانو نارینه ؤ په نومونو کښې هم راځي.

ش شراب د عـــفان نـوش کړه
زړۀ د عشق په مے مد هوش کړه (حافظ)

**عرفان حاصلول** :- (د خداے پاک پېژندنه حاصلول- د خداے پاک شناخت حاصلول.

**عرفان کېدل** :- (پېژندنه کېدل- پېژندل.

د خداے عرفان مې وشۀ په عرفان د محمدؐ
پاک دے محمد پاک دے سبحان د محمدؐ (خوشحال)

**عرفان موندل** :- (د خداے پاک پېژندنه حاصلېدل.

**عرفاني** :- (ع+رْ+فـا+نيِ)-[عف تر-صف]- هغه چې عرفان سره تعلق لري. پېژندنې سره متعلق یا پېژندنې ته منسوب. عموماً د عرفان نه دخداے پاک پېژندنه مراد اخستے شي.

**عرفه** :- (عَ+رَ+فَ)-[ع-اس-مو]- د ذوالحج د میاشتې نهم تاریخ. په دې ورځ حاجیان د عرفات مېدان کښې جمع کېږي او د حج احکام په ځاے راوړي. (وـــ عرفات).

**عرفي** :- (عُ+رْ+فِي)-[عف تر-صف]- عام- اولسي- هغه کار یا عمل کوم چې د عام رواج مطابق شوے وي- اولسي رواج یا قانون.

**عرفي قانون** :- (ـــــ+قا+نُو+نْ)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه]- هغه قانون چې د عام رواج مطابق وي- رواجي قانون (د شرعي په مقابله کښې).

**عرفي قباله** :- (ـــــ+ق+با+لَ)-[عف تر-اس-مو-ج:قبالې]- د جائیداد او د خرڅ هغه کاغذ کوم چې د عام اولس د رواج مطابق وي.

**عرفي نکاحنامه** :- (ـــــ+ن+کا+ح+نا+مَ)-[عف تر-اس-مو-ج:مې]- هغه نکاح نامه کومه چې د اولس د رواج مطابق لیکلې شوي وي.

**عرفیه** :- (عُ+رْ+فِي+یَ)-[عف تر-صف-مو]- د ((عرفي)) تانیث دے.

**عرفیه قوانین** :- (ـــــ+قَ+وا+نيِ+نْ)-[عپ تر-اس-ج]- هغه قوانین کوم چې عام رواج سره تعلق لري- رواجي قوانین.

**عرق** :- (عَ+رَ+قْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) خوله- خوېله- خوی. (۲) هغه اوبۀ چې د مېوو یا ګلونو نه په نچوړولو یا د بړاس په ذریعه اېستے شي.

**عرق الود** :- (ـــــ+آ+لُو+دْ)-[عف تر-صف مذ-مؤ:ه]- په خولو لوند- د خولو ډک- خولې شوي- چې خولې (په مخ وغېره) را برسېره شوې وي.

**عرق اور** :- (ـــــ+ا+وْ+رْ)-[عف تر-صف]- خوله راوستونکې دوائي.

**عرق** :- (ع+رْ+قْ)-[ع-اس-مذ]- رګ- ریشه.

**عرق النساء** :- (ـــــ+قُ+نْ+نِ+سا)-[ع تر-اس-مذ]- اصلاً دا د یو رګ نوم دے، چې د کوناټو نه واخلې د زنګانه تر ستر ګې پورې وي- خو عموماً یو مرض ته وائي- چې پکښې د پښې په پلۀ کښې سخت درد پېدا کېږي.

**عرقي** :- (عَ+رَ+قِي)-[عف تر-صف]- عرق (خوله) سره تعلق لرونکے. د خولې- لکه: عرقي غده.

**عروج** :- (عُ+رُو+جْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) بره ختنه- پورته ختنه- پورته کېدنه- ترقي. (۲) اوچت والے- لوړوالے- لویه مرتبه.

**په عروج ((بودل))** :- (په اوچتو پایو بودل- په ترقۍ ((بودل)) لوړ مقام ته رسېدل.

**عروس** :- (عَ+رُو+سْ)-[ع-اس]- (۱) ناوې- هغه پېغله چې د وادۀ دپاره سنباله کړے شوې وي. (۲) نوې وادۀ شوې پېغله. (اصلاً دا لفظ د وادۀ هلك او ناوې دواړو دپاره وو- خو اوس صرف د ناوې د معنو دپاره استعمالېږي)

کـــه څوك وغواړي تمامه دنیا واړه
زما یار غوندې به نۀ وي بل عروس (رحمان بابا)

**عروسي** :- (عَ+رُو+سي)-[عف تر-صف]- (۱) د عروس یعنې ناوې سره متعلق. ناوې ته منسوب- لکه: عروسي جوړه. (۲) نکاح- وادۀ.

**عروضي** :- (ع+رُو+ضي)-[عف تر-اس-صف]- (۱) د عروض علم سره متعلق. (۲) عروض دان- د عروضي د علم پوهان.

**عـروق** :- (عُ+رُو+قْ)-[ع-اس-ج]- (۱) د عـرق جمـع ده. نـري رګونـه- دوینـې رګونه. (۲) جرړې.

**عروه** :- (عُ+رْ+وَ)-[ع-اس-مو-ج:وې]- (۱) دستکے. (۲) حلقه.

**عروة الوثقیٰ** :- (ـــــ+تُ+لْ+وُ+ثْ+قا)-[ع-تر-اس]- (۱) مضبوط حلقه یا کلك دستکے. (۲) د هغه مشهور اخبار نوم کوم چې جمال الدین افغاني د پېرس نه جاري کړے وۀ- دا په عربۍ ژبه کښې وۀ.

**عریان** :- (عُ+رْ+یا+نْ)-[ف-صف-مذ-مو:ه]- (۱) بربنډ- برمند- لغړ- لخ. (۲) هغه لیك یا شعر چې پکښې د بې شرمۍ خبرې وي.

که عریان تن وي نېکان بد په زر بفت شي
ګـــوره نه کړے لـــــه نېکانو بدان سم (سعید)

**عریاني** :- (عُ+رْ+یا+نيِ)-[ف تر-اس-مو]- (۱) بربنډوالے- بربنډتوب- لڅوالے. (۲) په لیك یا شعر کښې د بې حیایۍ خبرې کول.

**عریضه** :- (عَ+ري+ض)-[ع-اس-مو-ج:عریضې]- (۱) عرضي- درخواست. (۲) د انکسار دپاره خپلې چیټۍ یا خپل خط ته هم عریضه وائي.

**عزّ** :- (عَ+زْ+زْ)-[ع-صف]- غالب شۀ- زورور شو. (عموماً نورو الفاظو سره راځي.

**عزاسمه** :- (ـــــ+ا+س+مُ+هُو)-[جمله]- د هغه دې نوم عزت واله او زورور وي- د خداے پاك د نوم نه پس په طور د تکریم او احترام وئیلې یا لیکلے شي. (د عزّ اصلاً د ماضي صیغه ده- یعنې زورور یا غالب شۀ)

**عزّوجلّ** :- (ـــــ+وَ+جَ+لْ+لَ)-[ج-جمله]- د هغه دې عزت (زورورتیا) او جلال وي- د خداے پاك نوم نه وروستو په طور د تکریم او احترام وئیلے یا لیکلے شي. (اصلاً دواړه د ماضي صیغې دي- یعنې هغه غالب شۀ او بزرګ شۀ).

**عِز** :- (ع+زْ)-[ع-صف]- د ((ذل)) نقیض دے. عزت- شرف- بزرګي. (عموماً د

فارسي په مرکباتو کښې استعمالېږي، چې په پښتو کښې هم راشي- لکه عزّوجاه.

**عزا** :- (عَ+زا)-[اس-مو-ج:ګاني-وې]- (۱) ماتم- سوګواري- د مړي په غم کښې شریکېدنه. (۲) سونګه- ویر.

**عزادار** :- (ـــ+دا+رْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان-(مؤ:ه)]- (۱) ماتم کوونکے- سوګوار- د مړي په غم کښې شریکېدل. (۲) دامام حسینؓ د شهادت په یاد کښې د ماتم مجلس سازوونکي- یا په داسې مجلس کښې شریکېدلونکي.

**عزاداري** :- (ـــ+دا+ري)-[عف تر-اس-مو]- ماتم کونه- د مړي په غم کښې شریکېدنه. سوګواري.

**عزازیل** :- (عَ+زا+زي+لْ)-[اس-مع-مذ]- د شېطان نوم دے. ابلیس- خناس- (دا د عزل نه وتے دے، چې معنی ئې بېلېدنه او جدا کېدنه ده. دے د خپلې نافرمانۍ په وجه د فرښتو د ډلې نه جدا کړے شوے وؤ- ځینې وائي، چې اصلاً د عبرانۍ لفظ دے).

د دې دور درویشـان خلیفـه بس دي
اوس خپل ځان سره بدکارکړه عزازیله (خوشحال)

**عزائم** :- (عَ+زا+ئ+مْ)-[ع-اس-ج]- د ((عزم)) جمع ده. عزمونه- ارادې.

**عـزت** :- (عِـي+(ع)+زْ+زَ+تْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- (۱) حرمت- پت- ابرو بزرګـي- درنـاوے- شـرف. (۲) غلبـه- غالـب کېدنـه- زوروړتیـا. (۳) د نارینه ؤ په نومونو کښې هم استعمالېږي.

**عزت اخېستل – اغېستل** :- (بې عزتي کول- ذلیل کول- سپک سلوك کول- ابرو رېزي کول.

**عزت افزایي** :- (ـــ+اَ+ف+زا+یي)-[عف تر-اس-مو]- د عزت زیاتونه- د قدر او احترام زیاتونه- درناوے ورکونه.

**عزت افزایي کول** :- (عزت زیاتول- درناوے (ور) کول.

**عزت افزایي کېدل** :- (عزت زیاتېدل- قدر کېدل- درناوے ورکړے کېدل.

**عزت بېلل – تلل** :- (۱) عزت نه پاتې کېدل- بې عزته کېدل- سپکېدل ذلیل کېدل. (۲) بدنامیدل- تورپوري کېدل.

**عزت ته کتل د چا** :- (د چا د عزت او درناوي خیال ساتل داسې کار یا خبره نه کول، چې دبل پکښې سپکاوے وي.

**عزت دار** :- (ـــ+دا+ر)-[عف تر-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو:ه)]- عزت لرونکے- عزت واله- درون قدر او بزرګي لرونکے.

**عـزت سـاتل** :- (عـزت پـه ځـاے سـاتل- د بې عزتـۍ او سپکاوي نـه بـچ کـول- داسې کـار یـا خبـره نـۀ کېـدل چې پکښې دبـل (یـا خپلـه) بې عزتي او سپکاوے وي.

**عـزت کـول** :- (۱) احتـرام کـول- بزرګـي او مشـري منـل- ادب کـول. (۲) عـزت ورکـول- لکه: خداے دې ستا عزت وکړي.

**عزت مآب** :- (ـــ+مَ+آ+بْ)-[عف تر-صف]- دعزت دور ګرځېدلو ځاے مجازاً عزتمند- لوے عزت واله. (عموماً چا مشر یا لوے سړي ته د عزت او احترام په طور لیکلے شي). (۲) د افغانستان یو خطاب چې د ((ع)) په مخفف سره څرګندولے کېدۀ.

**عزت من** :- (ـــ+مَ+نْ)

**عـزت منـد** :- (ـــ+مَ+نْ+دْ)-[عـف تـر-مـذ-ج:ان-(مـؤ:ه)]- عـزت والـه- د عـزت خاوند- عزت دار- درون- (په خلکو کښې درناوے لرونکے

**عزت النفس** :- (ـــ+تُ+نْ+نَ+فَ+س)-[ع تر-اس-مذ]- د خپل نفس عزت- د خپل ځان عزت- خودداري.

**عزت ورکول** :- (درناوے ورکول- ادب کول.

**په عزت کښې فرق راتلل** :- (په کوم کار یا خبره کښې د چا په عزت کښې کمے راتلل- په شان کښې فرق راتلل.

**د آب او د عزت خلق** :- (عزت داره خلک- عزتمند خلک- درانۀ خلک.

**عـزدازي** :- (عَ+زْ+دا+زَ+ئ)-[اس مـع]- د بـدین زئیـو څانګـه ده. (بـدین زي- اچکزي- ابدال) ترین دي.

**عزدي خېل** :- (عَ+زْ+دي+خېل)-[اس مع]-د عزدي خېل- شمك خېل- عبدالله یي- عبدللئ- اېمل خېل (بهلول زئ) محسود دي. په بله شجره کښې د عزدي خېل په ځاے ازدي خېل لیکلے دے- او د شمك خېل په ځاے شمې خېل لیکلے دے.

**عـزدي خېـل**[۲] :- (عَ+زْ+دِي+خېـل)-[اس-مـع]- د شـاهي خېلـو وړه څانګـه ده. (شاهي خېل- منذر خېل- عزیز خېل- نظرخېل- اېمل خېل- بهلول زے محسود دي.

**عزرائیل** :- (عَ+زْ+را+ئي+لْ)-[اس مع]- د هغې فرښتې نوم چې روحونه قبض کوي. د مرګ فرښته- ملك الموت. (اصلاً دا د ((عـزر)) (بنده) او د ((ایـل)) (خداے) مرکب دے- یعني د خداے بنده.

**عزل** :- (عَ+زْ+لْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) معطل کېدنه- موقوف کېدنه- برطرفي- د نوکرۍ نه اېستلې کېدنه. (۲) بېکاري- معطلي.

ما به نۀ کاندي تور زاغ معزول له باغه
کـه ذوالفضل مې په عزل مشیر نۀ شي (حافظ)

**عزل کول** :- (موقوف کول- اټالول- معزوله کول- برطرفه کول.

**عزل و نصب** :- (ـــ+(و)+نَ+ص+بْ)-[عف تر-اس]- موقوفي او بیا بحال کونه د نـوکرۍ وغېـره نـه ایستنه او بیا پـه ځـاے لګـول- تنزل او ترقـي- بدلونـه را بدلونه.

**عزلـت** :- (عُ+زْ+لْ+تْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- (۱) ګوښـې کښېناسـتنه- ګوشـه نشیني. (۲) د عبادت دپاره خلوت اختیارونه. اعتکاف.

**عـزت ګـزین** :- (ـــ+ګُ+زي+نْ)-[عـف تـر-اس-مـذ:ان-(مـؤ:ه)]- (۱) ګوښـه نیوونکے- ګوشه نشین. (۲) د عبادت دپاره له خلکو (بال بچ وغېره) نه جدا کېدلو واله.

**عزم** :- (عَ+زْ+مْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- اراده- نیت- قصد- انګڅه- هوډ تکل.

**عزم کول** :- (اراده کول- نیت کول.

**عزیـز** :- (عَ+زي+زْ)-[ع-اس-صف-مـذ-ج:ان-(مـؤ:ه)]- (۱) خپـل- رشـته دار. (۲) خوږ خوښ- د مینې-محبوب- د خوښې. (اصلاً دې لفظ معنی زورور- غالب ده خو په پښتو کښې په دې معنی کښې کم کوزلېدے شي).

عنکبوت غـوندې اسیر په نرې تاریم
عزیز عمر مې تېرېږي په خوارۍ کښې (حافظ)

**عزیز ساتل** :- (مینه ورسره کول- محبوب ساتل.

صورت که ډېر عزیز ساتې مرګ به ئې خوار که اخر
چـې تر قیامته خاك اسیر بندي د ګـور پاتې شي (حافظ)

**عزیز کېدل** :- (قدرمن کېدل- عزت موندل.

**عزیز ګلـوي** :- (ـــ+ګَ+لْ+وي)-[عـپ تـر-اس-مـوا]- عزیزولـي- رشـته داري- خپلولي.

**عزيزلرل** :- (خوږ لرل- دروند لرل- ډېره زياته مينه چا سره لرل- ډېر خوښول- ګران لرل.

اب تـــر لعــــلو د لالـــــه ګــلونـــو ډېر دي
بخت دې دا چې څوك عزيز كاندي څوك خوار (رحمان بابا)

**عزيزولي** :- (ـــــ+وَ+لي)-[عپ تر-اس-مو]- رشته داري- خپلولي.

**دمصر عزيـز** :- (دَ+مِ+صْ+رْ+ـــ)-[اس-مذ]- (۱) د مصر د پخوانو بادشاهانو لقب ؤ. د مصـر بادشـاه وروسـتو د دې پـه ځـاى د «خـديو» لفـظ استعماليدۀ. (۲) حضرت يوسف عليه السلام چې وروستو د مصر حاكم شوے ؤ.

**وروړ عزيـز** :- (و+رو+ړْ+ـــ)-[عـپ تـر-اس-مـذ]- وروړ يـا رشـته دار- د نـزدې رشته يا د لرې رشته- ټول رشته داران.

**يار عزيز** :- (يا+رْ+ـــ)-[عپ تر-اس-مذ]- رشته دار او دوست.

**عزيزخېـل** :- (عَ+زِي+زْ+خېـل)-[اس-مـع]- د بـاش خېلـو وړه څانګـه ده. بـاش خېل- شراكي- كلے- ادم خېل افريدي دي.

**عزيـز خېـل** :- (عَ+زِي+زْ+خېـل)-[اس -مـع]- د نظرخېلو څانګـه ده. (نظرخېـل- ايمل خېل- بهلولزي محسود دي. (مُنذرخېل د عزيز خېلو څانګه ده).

**عزيزخېـل** :- (عَ+زِي+زْ+خېـل)-[اس-مـع]- د علـي شـېرڅانګه ده. علـي شـېر- ګدايي زي- الياس زي- بنېروال دي.

**عزيزخېـل** :- (د دغـه)-[اس-مـع]- مـاميزيو څانګـه ده. (مـاميزي- مشـتي د اوركزيو همسايه قبيله ده.

**عزيز خېل** :- (ددغه)-[اس-مع]- د ملاخېلو څانګـه ده. چې د اوركزيـو همسـايه قبيله ده.

**عزيزخېـل** :- (ددغـه)-[اس-مـع]- د كروخېلـو څانګـه ده. كروخېـل-ملـي خېـل- سالاړي-الياس زي بنېروال دي.

**عزيزخېل** :- (ددغه)-[اس-مع]- د دريـي خېلو څانګـه ده. دري خېـل- قمبرخېـل افريدي دي.

**عزيزخېل** :- (ددغه)-[اس-مع]- د اكازئيو څانګه ده. اكازي-عيسىٰ زي يوسف زي دي.

**عزيزخېـل** :- (ددغـه)-[اس-مـع]- د شـموزئيو څانګـه ده. شـموزي- خـوازه زي- اكوزي يوسفزي دي.

**عزيزخېـل** :- (ددغـه)-[اس-مـع]- د علـي شـېرو وړه څانګـه ده. علـي شـېر بابرخېل- كيمل خېل- ارمزخېل (لپاه) افريدي دي.

**عزيزخېـل** :- (ددغـه)-[اس-مـع]- د شـادي خېلـو څانګـه ده. شـادي خېـل- بـورا خېل- مهمت خېل- اتمان زي- درويش خېل وزير دي.

**عزيمـت** :- (عَ+زِي+مَ+تْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- عـزم- اراده- مقصـد- نيـت- انګخه- هوډ- تكل.

**عساكر** :- (عَ+سا+كِ+رْ)-[ع-اس-ج]- د «عسكر» جمع ده. لښكرې- فوځونه.

**عسـر** :- (عُ+سْ+رْ)-[ع-اس-مـذ]- (۱) ګرانـه- تنګـي- مشـكل. (۲) تنګدسـتي- خواري-سختي.

**عسر البول** :- (ـــــ+رُ+لْ+بُو+لْ)-[ع تر-اس]- (طب) د متيـازو كم كم يا څاڅكے څاڅكے راتلل.

**عسر النفس** :- (ـــــ+رُ+نْ+نَ+فَ+س)-[ع-تر-اس-مذ]- (طب) د ساه تنګسيا- د ساه په اخېستلو كښې تكليف. ضيق النفس- ساه لنډے.

**عسـرت** :- (عُ+س+رَ+تْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- (۱) تنګـي- مفلسـي- غريبـي.

(۲) ګرانتيا- دشواري- تكليف- سختي.

هېر ئې كل فاني عشرت ؤ
پــه عسرت راضـي كېدۀ (حافظ)

**عَسَس** :- (عَ+سَ+سْ)-[كوتوال- د پوليس افسر(چې اوس ورته تهانړېدار وائي) د ښهر محافظ.

بـې پــروا بــې فهمـــه مـــه راځـــه خوشـــحاله
پـــه پالنـــګ مـــې ډېـــره ويـــره د عســـس ده

**عســكر** :- (عَ+س+كَ+رْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه-ع-(ج:عسـاكر)]- لښـكر- فوځ. (اصلاً دا د فارسي د لشكر نه موب شوے دے).

**عسكري** :- (عَ+س+كَ+ري)-[عـف تر-صف]- (۱) عسكر يعنې لښكر سره تعلق لرونكے- لښكر ته منسوب- لښكري- فوځي. (۲) فوځي سپاهي.

**عكسري خېل** :- (عَ+س+كَ+ري+خېـل)-[اس-مع]- د ابراهيم خېلو وړه څانګه ده. ابراهيم خېل-علي خېل-ماموزي- لشكرزي اوركزي دي.

**عسكريت** :- (عَ+س+كَ+رِي+يَ+تْ)-[عپ تر-اس-مذ]- (۱) فوځ يا لښكر سره متعلق حالت. (۲) عكسري توب- بهادري. جنګياليتوب- مېړنتوب.

**عسل** :- (عَ+سَ+لْ)-[ع-اس-جم]- شهد-شات- ګبين- ګبينه.

**عسير** :- (عَ+سِي+رْ)-[ع-صف-مذ-مؤ:ه]- عسرت واله- ګران- مشكل دشوار.

**عسير العلاج** :- (ـــــ+رُ+لْ+ع+لا+جْ)-[ع تر-صف]- هغـه مرض چې دارو درمـل ئې ګران وي- ناعلاجه.

**عُش** :- (عُ+شْ)-[ع-اس-مذ]- دمرغو جاله- اشيانه.

زۀ لكه د فَرْخ په عُش دننه معاش غواړم
وجه د قدرت نۀ لرم هېڅ قوت ګذران ته (حافظ)

**عشا** :- (عَ+شا)-[ع-اس-مـذ]- (۱) د شـپې يـا د ماسـختن د وخت ډوډۍ (پـه عربي كښې د دې لفظ اخر تـه همزه ليكلے شي) (۲) شـمكوري- د شپې نظر نۀ لګېدنه. (د دې اخر ته همزه نۀ راځي).

**عشـا** :- (ع + شـا)- [ ع-اس- مـذ]- د ماسـختن نمـونځ- د ماسـختن د نمانځه وخت.

**عشاريه** :- (عَ+شا+رِي+يَ)-[ع-اس-مو]- د يو عـدد نـه ښكته شمېر دپاره د يو عدد چې كومې حصې چې د لسو او سلو وغېره برخو كښې تقسيم كړلے شي. د هغو د ښكاره كولو دپاره د صحيح عدد نه وروستو دا «عشاريه» لفظ راوړے شي. دا لفظ پـه هندسو كښې د «٫» پـه شكل كښې ليكلے شي- لكه اتۀ اعشاريه پنځه=٨.٥ . (خو نن سبا خو ئې (.) په شان ليكي لكه ٨.٥)

**عشـاق** :- (عُ+شْ+شا+قْ)-[ع-اس-ج]- (۱) د «عاشـق» جمـع ده. عاشـقان (۲) ديو راګ نوم- چې د نيمې شپې نه پس وئيلے يا غږولے شي.

جـــام د مېـــو دے يـــا رقـــص دخوبـــانو
پـــه هرځـــاے چـــې وبلـــه جمـــع شـــي عشـــاق

**عشائيه** :- (عَ+شا+ئِي+يَ)-[عـف تر-اس-مو-ج:ئې]- د ماسختن يـا د شـپې ډوډۍ- د شپې د ډوډۍ دعوت. [انګ:ډنر]

**عشـبه** :- (عُ+شْ+بَ)-[ع-اس-مـو]- يـو قسـم بـوټے دے، چـې پـه سـرداوي مرضونو كښې پكارولے شي- وينه هم صفا كوي. [انګ-ساسه پريلا]

**عشر** :- (عَ+شْ+ر)-[اس-عدد]- لس- دوه ځله پنځه.

**عشر** :- (عُ+شْ+ر)-[ع-عدد]- (۱) لسم- لسمه برخه. لكه: يو عشر ئې د امدن په فقيرانو ووېشۀ. (۲) اصطلاحاً د غلې زكات.

**عشر عشير** :- (ـــــ+عَ+شِي+رْ)-[عف تر-عدد]- د لسمې برخې لسمه برخه-

یعني سلمه برخه- مجازاً ډېر لږ مقدار- یو پوټے یو پوټسکے.

**عشرات** :- (عَ+شَ+را+تْ)-[ع-اس-عدد]- د عشره جمع ده. د لسو لسو شمېر- دهايي- دا ټولې ټالې نهه دي- يعنې لس، شل، دېرش، څلوېښت، پنځوس، شپېته، اويا، اتيا او نوي.

**عشرت** :- (ع+شْ+رَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) ښه ژوند- د خوشحالۍ او د هوس ژوند- د عېش ژوند. (۲) په خپله کښې ښۀ ژوند تېرونه. (۳) نفساني خوند اخستنه- مباشرت.

**عشرت انګیز** :- (ـــ+اَ+نْ+ګې+زْ)-[عف تر-صف]- عشرت يا خوشحالي پېدا کوونکے، خوشحالوونکے.

**عشره** :- (عَ+شَ+رَ)-[ع-اس-عدد]- لس (ورځې وغېره)- عموماً هفته سره يوځاے راځي- لکه: په هفته عشره کښې به راستون شم.

**عشره احکام** :- (ـــ+اَ+حْ+کا+مْ)-[عف تر-اس-ج]- لس احکام- لس حکمونه- هغه لس احکام کوم چې حضرت موسی عليه السلام ته د طور په غرۀ ورکړے شوي وو.

**عشره کامله** :- (ـــ+کا+مِ+لَ)-[عف تر-اس-مذ]- پوره لس ورځې- مراد ترې د هغو لس ورځو روژې دي- په کومو کښې چې درې خو د حج نه وړاندې او پاتې اووۀ ددې نه وروستو نيوې شي.

**عشره مبشره** :- (ـــ+مُ+بَ+شْ+شِ+رَ)-[عف تر-اس-مذ]- هغه لس صحابيان د چا په حقله چې د هغوي په ژوند کښې د جنت زيرے ورکړے شوے وۀ- هغه کسان دادي: حضرت ابوبکرؓ- حضرت عمرؓ- حضرت عثمانؓ - حضرت عليؓ- حضرت زبيرؓ- حضرت طلحؓ- حضرت سعدؓ- حضرت سعيدؓ- حضرت ابوعبيدهؓ- او حضرت عبدالرحمٰن بن عوفؓ.

**عشق** :- (ع+شْ+ق)-[ع-اس-مذ]- يو څيز (يا بني ادم) سره دحد نه زياته مينه بې کچه ډېر محبت.

**عشق انګیز** :- (ـــ+اَ+نْ+ګې+زْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- عشق پېدا کوونکے- مينه راالړزوونکے.

**عشق باز** :- (ـــ+با+زْ)-[عف تر-اس-صف-مذ-ج:ان-(مؤ:ه]- (۱) عشق کوونکے- مينه کوونکے- عاشق مزاج- په هر ښائست مئينېدونکے- حُسن پرست. (۲) تماش بين- عياش.

**عشق بازي** :- (ـــ+با+زي)-[عف تر-اس-مو]- (۱) عشق کونه- عاشقي- مئينتوب- حُسن پرستي. (۲) تماش بيني- عياشي.

**عشق پیچه** :- (ـــ+پي+چَ)-[عف تر-اس]- (۱) يوځېلې لرونکے بوټے چې سرۀ يا د مختلف رنګونو ګلونه کوي- او وړې وړې پاڼې لري (۲) يوه قسمه ځېلې چې په نورو ونو بوټو خېژي- او هله ئې پرېږدي چې وچ ئې کړي- په فارسۍ کښې ورته عشق پيچان وائي.

**عشق کول** :- (کوم څيز يا بني ادم سره بې کچه زيات محبت او مينه کول. عاشق کېدل- مينېدل.

**عشق کېدل** :- (مينه کېدل- مينه چاسره پېدا کېدل- عاشق کېدل.

**عشق لرل** :- (ډېره مينه لرل- بې کچه ډېره دلچسپي لرل- لکه: دے خپل کار سره عشق لري.

**حقیقي عشق** :- (ح+قِي+قي+ــــ)-[عف تر-اس-مذ]- د مجازي عشق ضد دے- رښتونے عشق خدا ے پاك سر مينه.

**رښتونیعشق** :- (ر+خْ+(ش)+تُو+نې+ــــ)

**رښتینے عشق** :- (رِ+خْ (ش)+تي+نې+ــــ)-[عپ تر-اس-مذ]- (۱) رښتينه مينه- هغه مينه چې څۀ شهواني اثر پکښې نۀ وي. (۲) د خدا ے پاك مينه.

**مجازي عشق** :- (مَ+جا+زِي+ــــ)-[عف-تر-اس-مذ]- د حقيقي عشق ضد دے- هغه عشق يا مينه چې چا (ښکلي) بني ادم سره وي- دنيوي مينه- نفساني مينه- حسن پرستي.

**عشقي** :- (ع+شْ+قي)-[عف تر-صف]- (۱) عشق سره متعلق- عشق ته منسوب. (۲) عشق کوونکے.

**عشوه** :- (ع+شْ+وَ)-[ع-اس-مؤ-ج:وې]- ناز- کرشمه- نخره- ادا- خوښېدونکے حرکت يا کار- کېڅ.

**عشوه پرداز** :- (ـــ+پَ+رْ+دا+زْ)-[عف تر-صف مذ-مؤ:ه]- نازنخرې کوونکے- کېڅ مکېڅ کوونکے –معشوقه.

**عشوه ساز** :- (ـــ+سا+زْ)

**عشوه ګر** :- (ـــ+ګَ+رْ)-[عف تر-صف-مذ-مؤ:ه]- ناز نخرې کوونکے کېڅ مکېڅ کوونکے. د معشوقې د صفت په طور استعمالېږي.

دلنوازه، سرفرازه، عشوه سازه، لعبت بازه (خوشحال)

**عشوه ګیر** :- (ـــ+ګِ+ري)- ناز نخرې کونه- کېڅ مکېڅ.

**عشیر** :- (عَ+شي+رْ)-[ع-اس-عدد]- (۱) لسمه برخه- (۲) خوېش- خپل- خانواده.

**عصا** :- (عَ+صا)-[ع-اس-مو-ج:ګانې]- د لاس لرګے- همسا- سوټے- لکړه.

**عصا بردار** :- (ـــ+بَ+رْ+دا+رْ)-[عف-تر-اس صف-مذ-ج:ان]- همسا پورته کوونکے- هغه کس چې د بادشاهانو وړاندې وړاندې ځي- او د نخښې په طور ئې همسا په لاس کښې وړاندې نېولې وي.

**عصب** :- (عَ+صَ+بْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه-ع (ج):اعصاب]- پله- سپيني- اړبنه. (د بدن هغه سپينه شان مضبوطه پټه، په کومه چې د بدن اعضا تړلي دي. او د دې پټو په وجه حرکت کوي).

**عصبي** :- (عَ+صَ+بي)-[صف]- عصب سره تعلق لرونکے.

**عصبي سستم** :- (ـــ+س+س+ټ+مْ)-[ع-انګ-تر-اس-مذ-ج:ونه]- عصبي نظام- د بدن د پلو (اعصابو) نظام.

**عصبي مرضونه** :- (ـــ+مَ+رَ+ضُو+نَ)-[عپ تر-اس-ج]- هغه مرضونه چې اعصابو (پلو) سره تعلق لري.

**عصبي نظام** :- (ـــ+ن+ظا+مْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]- د حيواناتو د بدن د پلو- (اړبو) نظام- يعني چې د بدن پلې څنګه کار کوي- عصبي سستم.

**عصبيت** :- (عَ+ص+بِي+ی+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) عصب سره تړون- طرفداري- قرابت داري. (۲) پلې سره متعلق- مضبوطوالے- کلك والے. ۳) د جماعت يا د پارټۍ طرفداري.

**عصبیه** :- (عَ+صَ+بي+یَ)-[ع-صف-مو]- (۱) عصبي- اعصابو سره تعلق لرونکے. (۲) جماعت يا پارټۍ سره تعلق لرونکے.

**عصر** :- (عَ+ص+رْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه-اعصار-عصور]- (۱) زمانه- روزګار- دور- (اوږده) موده. (۲) مازديګر- مازيګر- د ماسپښين او د ماښام ترمينځه وخت.

**حاضر عصر** :- (حا+ض+رْ+ــــ)-[عف-تر-اس-مذ]- موجوده زمانه- اوسنے يا روان وخت- اوسنے دور.

**هم عصر** :- (هَـ+مْ+ــــ)-[عف-تر-صف-مذ-مو:ه]- (۱) د يوې زمانې- د يو وخت. (۲) هغه دوه (يا زيات) کسان چې د ژوند زمانه ئې يوه وي.

**عصري** :- (عَ+ص+رِي)-[عف-صف]- هغه څيز يا کار چې عصر (موجوده

وخت یا زمانې سره تړون لري- موجوده وخت- یا زمانې ته منسوب.

**عصري کول** :- (نوې زمانې سره مطابق کول- نوي حالاتو سره سمون ورکول- جدید کول.

**عصري کېدل** :- (د نوې زمانې سره مطابق کول- جدت پیدا کول.

**عصري کېدهٔ** :- (عپ تر-حمص)- نوې زمانې سره سم کېدهٔ.

**عصریت** :- (عَ+صْ+رِي+یَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- زمانې سره تړون- نوي وخت سره تعلق- نوے والے.

**عصریه** :- (عَ+صْ+رِي+یَ)-[عف تر-اس-مو-ج:ئې]- د مازدیگر د وخت خوارهٔ- یا چائې- عصرانه- د مازدیگر دوخت دعوت- لکه: روسته بیا یوه عصریه وخوړله شوه.

**عصفور** :- (عُ+سْ+فُو+رْ)-[ع-اس-مذ-ج:عصافیر]- مرغۍ- کورنۍ مرغۍ- چرچڼه.

**عصمت** :- (عِ+صْ+مَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: ونه]- (۱) خپل ځان د ګناه نه ژغورنه- پاك لمنې- پاکبازي- پرهېزګاري- پارسایي.

**عصمت پناه** :- (ـــ+پَ+نا+ه)-[عف تر-صف]- یو لقب دے- چې درنو او پاك لمنو زنانهٔ دپاره د عزت په طور استعمالېږي- د عصمت مېرمن- پاك لمنه مېرمن.

**با عصمت** :- (با+ـــ)-[عف تر-صف]- د عصمت واله- پرهېزګار- پاك لمنه.

**عصور** :- (عُ+صُو+رْ)-[ع-اس-ج]- د ((عصر)) جمع ده. زمانې- وختونه.

**عصیان** :- (ع+صْ+یا+نْ)-[ګناهګاري- نافرماني- سرکښي- ګناه (اصلاً ددې معنی د سخت یا کلك وي- هرکله چې د ګناهګار سړي زړهٔ سخت وي- ځکه دا لفظ په دغه معنی کښې مجازاً استعمالېږي.

**عضلات** :- (عَ+ضَ+لا+تْ)-[ع-اس-ج]- د ((عضله)) جمع ده.

**عضلاتي** :- (عَ+ضْ+لا+تِي)-[عپ تر-صف]- هغه څیز مرض یا کار چې د عضلو سره تعلق لري- د پلو سره متعلق- د پلو.

**عضلاتي قوت** :- (ـــ+قُو+وَ+تْ)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه]- د عضلو (پلو) طاقت- داعصابو طاقت.

**عضلاتي کار** :- (ـــ+کا+رْ)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه]- هغه کار چې تعلق ئې عضلو (پلو) یا اعصابو سره وي- د بدن مشقت.

**عضله** :- (عَ+ضْ+لَ)-[ع-اس-مو-ج:لې-عضلات]- (۱) کبوړے- د مټ غوښه- کلکه غوښه. (۲) پله.

**عضله دار** :- (ـــ+دا+ر)-[عف تر-صف]- هغه حیوان چې عضلې (پلې) لري- د پلو واله حیوان.

**بازو عضله** :- (دَ+با+زُو+ـــ)- هغه پلې یا تور غړي کوم چې د بني ادم مټ یا لاس کښې وي.

**قوي عضله لرل** :- (مضبوطې پلې یا تور غړي لرل- مضبوط او توانا ((بودل)).

**عضو** :- (عُ+ضْ+وْ)-[ع-اس-مذ-ج:اعضاء]- (۱) اندام- د بدن حصه یا ټکړه. (۲) دیو جماعت وغېره غړے- رکن- ممبر.

**د تناسل عضو** :- (دَ+تَ+نا+سُ+لْ+ـــ)-[عف تر-اس-مذ]- د نسل د زیاتولو یا پیدا کولو عضو- غېنړ- غڼ- ذکر.

**عضوي** :- (عُ+ضْ+وِي)-[عف تر-صف]- هغه څیز یا کار وغېره کوم چې عضو یعنې د بدن کومې حصې سره تعلق لري.

**عضوي امراض** :- (ـــ+اَ+مْ+را+ض)-[عف تر-اس-ج]- هغه مرضونه کوم چې د بدن مختلفو حصو سره تعلق لري.

**عضوي کېمیا** :- (ـــ+کِي+مي+یا)-د طبیعیاتو هغه علم چې عضویاتو سره تعلق لري. (انګ:آرګېنګ کېمستري)

**عضوي مواد** :- (ـــ+مَ+وا+دْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]- هغه مواد کوم چې عضواتو (د بدن حصو) سره تعلق لري.

**عضویت** :- (عُ+زْ+وِي+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- د کوم جماعت وغېره رکنیت- ممبري.

**داکاډېمۍ دعضویت کاندید** :- (د اکاډېمۍ د رکنیت یا د غړي جوړېدلو امېدوار.

**عطا** :- (عَ+طا)-[ع-اس-مو-ج:ګانې]- (۱) بخشش- ورکړه- بخښنه- انعام. (۲) سخاوت- فیض. (۳) د مسلمانانو په نومونو کښې استعمالېږي.

**عطا سبحاني** :- (د خداے پاك ورکړه- خدائي انعام- د الله پاك بخشش.

په اوبـــو د صبـــر مې لره اور د قـــهر
په صابر باندې عطا ئې سبحاني ده (حافظ)

**عطا کول** :- (وربخښل- ورکول- په انعام کښې یا مفت او وړیا ورکول

**عطا کېدل** :- (وربخښلې کېدل.

**عطار** :- (عَ+طا+رْ)-[ع-اس-صف-مذ-مؤ:ه]- (۱) عطر خرڅونکے- عطر فروش. (۲) داروګان خرڅونکے- دوا فروش- پساري.

چې ئې هېچرې نه مثل نه مثال شته
د هغـــو عطر و عطار دے رب زما (رحمان بابا)

**عطارد** :- (عُ+طا+رِ+دْ)-[ع-اس-مع]- د یوې سیارې نوم- چې نمر ته د نورو تېولو سیارونه نژدې ده. د نمر نه ئې فاصله درې کروړه او شپېتهٔ لکه میله ده. د نمر نه چاپېره یو چکر (د زمکې د ورځو په حساب) په ۸۸ ورځو کښې پوره کوي. قطر ئې ۲۷۰۲ میله دے. د پخوانو خلکو د وېنا مطابق دا سیاره په دوېم اسمان کښې ده. او د دې تعلق علم او عقل سره دے. له دې کبله ورته دبیرفلك (د اسمان منشي) هم وائي.

عطارد د نـــور قلم له لاسه کښېږدي
چې په دا خوبۍ بهرام انشاء املاء کا (خوشحال)

(۲) د کېمیاګرو پـه اصطلاح کښې جستو (دهات) تـه وائي. (د دې لفظ اصل لفظ د عېن پېښ سره عُطارد دے. خو عام طور سره زور سره وئیلے کېږي).

**عطارد رقم** :- (ـــ+رَ+قَ+مْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- د عطارد په شان لیك کوونکے- ډېر ښهٔ لیك کوونکے.

**عطاري** :- (عَ+طْ+طا+رِي)-[عف تر-اس-مو]- (۱) د عطر د خرڅولو کار کـول- عطـر فروشـي. (۲) د داروګـانو خرڅولـو کـار یـا پېشـه. دوا فروشي- پساري توب.

**عطایي** :- (عَ+طا+یي)-[عف تر-صف]- هغه کس چې پخپله ئې څهٔ کار یا هنر زده کړے وي، چې بل چا ورته نه وي ښودلے-بغېر د استاد نه څهٔ کار هنر زده کولو واله.

د دهٔ علم عطایي وي
نـــه سبق د دانشمند! (خوشحال)

**عطایي طبیعت** :- (د خپلې خوښې طبیعت- چې دبل چا په وېنا پسې نهٔ ځي.

طبیعت مې عطایي نهٔ د تحصیل دے
کـــه خبـــر یم د امـــلاء په استعمال (خوشحال)

**عطایا** :- (عَ+طا+یا)-[ع-اس-ج]- د عطیه جمع ده. بخښنې. انعامونه- ورکړې.

**عطر** :- (عِ+طْ+ر)-[ع-اس-مذ-ج:ونـه]- (۱) خوشبو- خوشبویي. (۲) د ګلونـو

ایستلې شوې هغه ټینګ تېل شان چې ډېر خوشبویه وي. (اصلاً دا لفظ د عېن زبر سره او د طې سکون (غړوندي) سره دے. خو په پښتو کښې د عېن زور او د طې زورکي سره وئیلې کېږي).

**عطر ابستل – اُباسل – ویستل** :- (۱) د ګلونو په خاص عمل سره خوشبویه تېل وغېره ابستل- ست یا جوهر ابستل. (۲) خلاصه ابستل- د لوے کتاب وغېره نه ډېرې اهمې برخې په لنډو الفاظو کښې لیکل.

**عطر پلپل** :- (ـــ+پُ+لې+لْ)-[عف تر-اس-جم]- د دواړو لفظونو یو مطلب دے- مراد ترې خوشبویه څیزونه دي.

**عطردان** :- (ـــ+دا+نْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]- هغه ډبلې وغېره چې عطر پکښې کېښودے شي- د عطرو ډبلې.

**عطر فروش** :- (ـــف+رو+ش)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان-مؤ:ه]- عطر خرڅوونکے- عطري.

**عطر کش** :- (ـــ+کَ+ش)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان-مو:ه]- هغه کس چې د ګلونو وغېره نه عطر وباسي- عطر جوړونکے.

**عطر کشي** :- (ـــ+کَ+شي)-[عف تر-اس-مو]- عطر راوښکنه- عطر د څهٔ څیز نه راوېستل- د ګلونو وغېره نه عطر وباسل یا جوړول.

**عطر لګول – پورې کول – مږل** :- (په لاسونو یا مخ یا په جامو باندې خوشبویي مږل.

**عطرناک** :- (ـــ+نا+ک)-[عف تر-صف-مذ-مؤ:ه]- عطرو واله- په عطرو خوشبودار.

که بستر مې عطرناک ؤ، وار ؤ تېر شهٔ (خوشحال)

**د عطر پهه** :- (ـــ+پَ+هَ)-[عپ تر-اس-مو-ج:پهې]- د مالوچو وغېره وړه شان ټکړه، چې په عطرو کښې لونده کړې شوې وي. (عموماً ئې خلک په غوږونو کښې کښېږدي)

**د عطر څاڅکے** :- (ـــ+(ت)څا+(تْ+سْ+کے)-[عف-تر-اس-مذ-ج:کي]- د عطرو یوه قطره- مجازاً کمیابه څیز، نهٔ موندلے کېدونکے څیز.

**د عطر څاڅکے کېدل** :- (کمیابه کېدل- نهٔ موندلے کېدونکے. څیز کېدل

**عطري** :- (عَ+طْ+رِي)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ان]- (۱) عطر خرڅوونکے- عطر فروش. (۲) عطر جوړونکے- عطر ساز- عطر کش.

**عطریات** :- (عَ+طْ+رِ+یا+تْ)-[عف تر-اس-ج]- (۱) د عطرونو د جوړولو کاروبار یا فن. (۲) هغه څیزونه چې خوشبویي ورکوي. خوشبوداره څیزونه.

**عطسه** :- (عَ+طْ+سَ)-[ع-اس-مو-ج:سې]- انتهوشے- انتروشے- پرنجے- اینږے.- تروشے

**عطش** :- (عَ+طَ+ش)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- تنده- تږے کېدنه- جله.

**عطف** :- (عَ+طْ+ف)-[ع-اس-مذ-جد:ونه]- (۱) ګرځونه- راتاوونه. (۲) مېل- توجه- مهرباني. (۳) (قواعد)- یو ځاے کونه- خبره خبرې ته ورګرځونه- (کومه خبره یا جمله چې ورو ګرځولې شي- هغې ته معطوف وائي- او چې د کومې خبرې طرف ته وګرځولے شي هغه معطوف علیه بللې شي). (۴) هغه حرف چې دوه کلمې یا جملې یوبل ته ګرځوي- یا یو ځاے کوي. او-نو-نور- یا وغېره.

**عطفه کېدل** :- (ملاوېدل- یوځاے کېدل.

**عطفول** :- (عَ+طْ+فَ+ؤ+لْ)-[مص]- ورګرځول- ملاوول- یوځاے کول.

**عطوفت** :- (عَ+طُو+فَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- مهرباني- شفقت- مینه- پېرزونه.

**عطیه** :- (عَ+طْ+یَ)-[ع-اس-مو-ج:ئې]- بخشش- ورکړه- وربخښلے څیز- انعام.(د دې لفظ اصل تلفظ د طې زېر او د یٰ شد سره دے خو په پښتو په برنې ډول استعمالېږي).

**عظام** :- (عِ+ظا+مْ)-[ع-اس-ج]- دعظم جمع ده. هډوکي.

**عظام رمیم** :- (ـــ+رَ+مِي+مْ)

**عظام رمیمه** :- (ـــ+رَ+مي+مَ)-[عف تر-اس-ج]- هغه هډوکي کوم چې وروست شوي یا مات ګډ شوي وي.

**عظام** :- (عُ+ظا+مْ)-[ع-صف-ج]- د ((عظیم)) جمع ده. لوے-لوے خلک بزرګان- مشران.

د ذلیل د قدم خاورې شه سعیده
د عظمت علامت نشته په عظام کښې سعید

**عظم** :- (عَ+ظْ+مْ)-[ع-اس-مذ]- هډوکے- هډ- استخوان.

**عظمت** :- (عَ+ظْ+مَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- لوے والے- لوئي- بزرګي لوړوالے- ستروالے- ستري.

**عظمت خېل** :- (عَ+ظْ+مَ+تْ+خېل)-[اس-مع]- د زیرکَیو څانګه ده. (زیرکے ملي زاد دوړ دي.

**عظمٰي** :- (عُ+ظ+ما)-[ع-صف-مو]- لوے څیز(مؤنث) بزرګه ښځه.

**عظیم** :- (عَ+ظِي+مْ)-[ع-صف-مذ-مؤ:ه]- (۱) لوے- ستر- بزرګ. (۲) د خداے پاك یو صفاتي نوم.

**عظیم تره** :- (ـــ+تَ+رَ)-[عف تر-صف]- د نورو په مقابله کښې لوے ډېر لوے.

**عظیم الجثه** :- (ـــ+(مُ+لْ)جُ+ثْ+ثَ)-[ع تر- صف]- د لوئې جُثې یعنې د بدن خاوند- غټ او لوړ دنګ.

**عظیم الشان** :- (ـــ+(مُ+شْ)+شا+نْ)-[ع تر-صف-مذ-مو:ه]- (۱) لوے شان واله- لوے قدر واله- ډېر شان شوکت واله.(۲) ډېر لوے او ښکلے- لکه: عظیم الشان بلډنګ- عظیم الشانه جلسه.

**عظیم القدر** :- (ـــ+(مُ+لْ)+قَ+دُ+ر)-[ع-تر- صف-مذ-مو:ه]- د لوے قدر خاوند- لوے قدر او عزت واله- د لوئې درجې.

**عظیم المرتبت** :- (ـــ+(مُ+لْ)+مَ+رْ+تَ+بَ+تْ)-[ع-تر-صف-مذ-مو:ه]- د لوئې مرتبې خاوند- لوئې مرتبې واله.

**عظیم خان کور** :- (عَ+ظِي+مْ+خا+نْ+کو+رْ)-[اس-مع]- دعمرخان خېلو څانګه ده- عمرخان خېل- علي شېر زي- لشکرزي اورکزي دي.

**عفاف** :- (عَ+فا+نْ)-[ع-اس-مذ]- عفت- پاکي- پاکیزګي- پاك لمني- پارسایي.

شېخه ته چې اشارت کړې خپل عفاف ته
منتهٰی شوې د صوفیانو و اوصاف ته (حافظ)

**عفت** :- (عِ+فْ+فَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- ځان د ګناه نه بچ کول- پرهېزګاري- پاکبازي- پاك لمني.

**عفریت** :- (عِ+فْ+رِي+تْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) دیو- پېرے. (۲) مجازاً غټ پټ- لوړ دنګ او ډېر طاقتور سړے. (په پښتو کښې د عفریت په ځاے عموماً ((اقرا)) استعمالېږي- خو ((دیو)) هم ورسره راځي).

**عفو** :- (عَ+فْ+وْ)-[ع-اس-مو-ج:ګانې]- معافي- بخښنه- معاف کونه

**عفو غوارم** :- (ـــ+غ+وا+ړ+مْ)-معافي غوارم- بخښنه غوارم. د چانه چې څهٔ غلطي وشي- یا چاته ترې څهٔ تکلیف ورسي- نو دا جمله استعمالېږي- (دا اصلاً د انګرېزۍ د ((ایکسکیوزمي)) نقل دے.

**عفو غوښتل – غواړل** :- (معافي غوښتل- بخښنه غوښتل- د غلطۍ یا د ګناه د معاف کولو خواست کول.

**عفو کول** :- (معاف کول- بخښل- غلطي یا خطا معاف کول.

**عفونت** :- (عُ+فُو+نَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) د څهٔ څیز سخاکېدنه- (۲) بد بوي- بدبوی.

**عفوني** :- (عَ+فُو+نِي)-[عف تر-صف]- هغه څیز چي د خرابېدو په وجه بدبوی، پکښي پیدا شوي وي- خراب شوے- سخاشوے- بدبویه شوے. (انګ- انفیکټېډ)

**عفي** :- (عَ+فَ+یَ)-[ع-فعل]- عربي جمله ده- معاف دي کړي یا معاف دي کړے شي. عموماً عربي جمله (عفی الله عنه) کښي استعمالېږي- چي عموماً خلک په خطونو وغېره کښي د عاجزی په توګه خپل نوم سره لیکي. مختصراً ((عفی عنه)) هم لیکلے کېږي.

**عفیف** :- (عَ+فِي+فْ)-[ع-صف-مذ-] عفت واله- پاك لمن- پاکباز- پرهېزګار

**عفیفه** :- (عَ+فِي+فَ)-[ع-صف-مو-ج:ې]- د ((عفیف)) تانیث دے- پاك لمنه ښځه- پاکبازه ښځه. (د بد کاری (زنا وغېره) نه ځان ساتونکي ښځه)

**عقاب** :- (عُ+قا+بْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه-ان]- یو تور رنګے ښکاري مارغهٔ دے- چي ډېر تېز پرك او طاقتور وي- چي د کال نیم ماشوم هم تښتوي- باتور.

**عقابي** :- (عُ+قا+بِي)-[عف-تر-صف]- (۱) د عقاب سره تعلق لرونکے عقاب ته منسوب. (۲) د عقاب په شان- لکه: عقابي سترګې.

**عقارب** :- (عَ+قا+رِ+بْ)-[ع-اس-ج]- د ((عقرب)) جمع ده. لړمانان.

**عقائد** :- (ع+قا+ئِې+دْ)- د ((عقیده)) جمع ده. عقیدې.

**عقب** :- (عَ+قَ+بْ)-[ع-اس]- (۱) وروستیني حصه- وروستو. (۲) پونده.- (۳) زوے، نوسے، نمسے

**عقب نشیني** :- (ـــ+نَ+شِي+نِي)-[عف تر-اس-مو]- وروستو کښېناستنه- واپسي- پسپایي.

**په عقب کښي** :- (وروستو وروستو- چاپسي (تلل-راتلل).

**عقبي** :- (عَ+قَ+بِي)-[عف-تر-صف]- شاتنے- وروستنے- د شا د طرف.

**عقبا** :- (عُ+قْ+با)-[ع-اس-مذ]- وـــــ عقبٰی.

**عقبایي** :- (عُ+قْ+با+يِي)-[عف تر-صف]- د عقبٰی سره متعلق- د اخرت (د دنیایي یا دنیوي په مقابله کښي).

**عقبیٰ** :- (عُ+قْ+با)-[ع-اس-مو]- اخرت- بل جهان- وروستو راتلونکے ژوند (د دنیا په مقابله کښي)

چي په زیان د عقبٰی سود د دنیا اخلي
لـــه هغـــو سړیو ډېر ښهٔ دي سګان (سعید)

**عقبيٰ خرابول** :- (اخرت خرابول- دبل جهان ژوند خرابول- مجازاً بدکارونه کول- ګناهونه کول.

**عقد** :- (عُ+قْ+دْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- غوټه- ترنه. عهد- لوظ کول. نکاح.

د دنیا ناوې په عقد کښي دین غواړي
اے رحمانه ځان ئې ژغوره له نکاحه (رحمان بابا)

**عقد تړل** :- (نکاح تړل- د نکاح په بند کښي راوستل. وادهٔ کول.

**عقد کول** :- (نکاح کول- وادهٔ کول.

**عقد کېدل** :- (نکاح کېدل- وادهٔ کېدل.

**عقد نامه** :- (ـــ+نا+مَ)-[عف تر-اس-مو-ج:مې]- نکاح نامه.

**عقد** :- (ع+قْ+دْ)-[ع-اس-مذ]- لړ- لړی- هار- امېل.

**عقدونه** :- (عَ+قْ+دُو+نَ)- د ((عقد)) جمع ده.

**تجارتي عقد** :- (ت+جا+رَ+تي+ــــ) هغه لوظ نامې کومې چي د تجارت یا د سوداګری په لړ کښي شوې وي.

**عقده** :- (عُ+قْ+دَ)-[ع-اس-مو-ج:دې]- (۱) غوټه- غټه- ګره- ګنډه- تړ- ترنه (۲) ګران خبره- ګرانه لانجه- ګرانه معامله (لکه کلکه غوټه چي په اسانه نشي پرانستلے کېدلے).

**عقده حل کول** :- (مسئله حل کول- لانجه یا معامله سرته رسول- ګرانه حال کول.

**عقده کشایي** :- (ـــ+کُ+شا+يِي)-[عف تر-اس-مو]- غوټه پرانستل- مجازاً ګران حل کول.

**عقده کشایي کول** :- (مجازاً ګران حل کول.

**عقده واکول** :- (غوټه پرانستل- ګران حل کول.

**عقر** :- (عُ+قْ+رْ)-[ع-صف]- شنډتوب- شنډوالے- عَقم.

**عقرب** :- (عَ+قْ+رَ+بْ)-[ع-اس-مذ-ج:ان،عقارب]- (۱) لړم- ګژدم.

لکه ته چـــې د غصـــې د زهرو ډك ئې
نشته ستا په شانته زهر په عقرب کښي (علي خان)

(۲) د اسمان په دولسو برجونو کښي اتم برج. (۳) د شمسي کال اتمه میاشت. ابان- چي ۲۴ اکتوبر نه تر ۲۲ نومبره پورې وي.

**عقرب کېدل** :- (لړم کېدل- دښمن کېدل.

اقربان راته عقـــرب شول
رضا مند مې په تعب شول (خوشحال)

**عقربــك** :- (عَ+قْ+رَ+بَ+كْ)-[عـف تـر-اس]- (۱) لاس- دګـړی- ستن. (۲) کونډه- د اسپنې ټکړه چي دواړه اړخه ئې راتاؤ شوي وي او پکښي د کانو بلاکونه نیوے شي.

**عقرقرحا** :- (عَ+قَ+رْ+قَ+رْ+حَ)-[ع-اس-مو]- د یوې ترخې او تیزې جرړې نوم دے- چي په داروګـانو کښـي اسـتعمالېږي- خصوصـاً د غاښـونو د چینجو یا د قوت باه دپاره.

**عقل** :- (عَ+ق+لْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- پوهه- دانش- ادارك- دانایي- تمیز- شعور- فهم- زیرکي- خرد. (د دې لفظ اصل معنٰی د اوښ پښه په پړي تړل ده. خو هر کله چي پوهه، بني ادم بدو کارونو نه منع کوي- ځکه ئې دغه نوم شهٔ. (د پخوانو خلکو خیال وُ- چي دا په لسو فرښتو کښي د یوې فرښتې نوم وُ- ځکه د هغو نوم عقول عشره (لس عقلونه) کېښودے شو.)

**انساني عقل** :- (اِ+نْ+سا+نِي+ــــ)-[عفر تر-اس-مذ]- هغه عقل کوم چي بني ادم سره مخصوص دے- یعني تمیز- ادراك- درو اندېښي- انجام ته کتنه.

**اول عقل** :- (اَ+وْ+وَ+لْ+ــــ)-[عف تر-اس-مذ]- (۱) وړومبے عقل- د پخوانو حاکمانو په نزد هغه اولني فرښته چا چي اولنے اسمان او دوېمه فرښته پیدا کړه. (۲) د پخوانو مسلمانانو حکماؤ په نزد د دې نه مراد رسول پاك نور او جبرائیلؑ فرښته ده.

**عقل په پُوندو کښي (دے...)** :- (لائې عقل سر (مغز) ته نهٔ دے را رسېدلے- کم عقل- د بېوقوف سړي په حقله (عموماً طنزاً) وئیلے شي.

**عقل په ځاے نهٔ ((بودل))** :- (کم عقل ((بودل)) بې وقوف ((بودل)). د بې وقوفی یا کم عقلی کار یا خبره کول.

**عقل جنګول** :- (د عقل نه کار اخستل- سوچ کول- فکر کول.

**عقل چرته تلل** :- (عقل په سر کښي نه ((بودل))- مجازاً بېوقوف کېدل کم عقل

کېدل. لکه: تا چې پردي سرې له دومره روپۍ ورکولې نو عقل دې چرته تللے ؤ.

**عقل څربدلو له تلل** :- (کم عقل «بودل») ناپوهه- بېوقوف «بودل».

**عقل حېران پاتې کېدل** :- (داسې کارلېدل يا داسې خبره اورېدل چې په پوهه کښې نۀ راځي- ډېر عجيبه کارلېدل يا خبره اورېدل.

**عقل خطا ((بودل))** :- (غلطه فېصله کول.

د خوشـحال عقـل خطـا نـۀ ؤ نـور څـۀ ؤ
چـې خـاني ئـې پـه بهـرام کړلـه نـامزده

**عقل خوزېدل** :- (مجازاً د ډېرې حېرانتيا کار يا خبره ليدل- چې په عقل کښې نه راځي.

**عقل زده کول** :- (د چانه زده کړه کول- ځان پوهول- هوښيارېدل.

**عقل زغلول** :- (سوچ او فکر کول.

**عقل سره وړې کول** :- (عقل سره دښمني لرل- مجازاً ډېر کم عقل بودل- د بې وقوفۍ کار (يا کارونه) کول.

**عقل سليم** :- (ـــ+سَ+لِي+مْ)-[عف تر-اس-مذ]- صحيح او پوره عقل- صحيح او درسته رائې.

**عقل ښودل** :- (مص-تر)- چاته د عقل خبره ښودل- سبق ورکول- نصيحت کول. لکه زۀ په خپل کار ښۀ پوهېږم- تۀ ماته عقل مه ښايه.

**عقل ښئيل** :- (چاته د عقلمندۍ کار ښئيل- پوهول.

**عقل کار نۀ کول** :- (څۀ خبره په پوهه کښې نۀ راتلل- د څۀ خبرې په حقله د صحيح سوچ او فکر نۀ پاتې راتلل.

**عقل من** :- (ـــ+مَ+نْ)

**عقل مند** :- (ـــمَ+نْ+دْ)- د عقل څښتن- عقل واله- هوښيار- زيرک- پوهه- پوهان.

**عقل مندي** :- (ـــ+مَ+نْ+دِي)

**عقل مني** :- (ـــ+مَ+نِي)-[عپ تر-اس-مو]- هوښيارتيا- پوهه- زيرکي دانش مندي- دانايي- فهم.

**عقل ورکول** :- (بل ته عقل ښېئل- بل سړے پوهول- بل ته د هوښيارتيا خبرې کول.

**عقل ئې له سره څخه ځي** :- (عقل ئې د سر نه لاړ شي- بې عقله شي- کم عقله شي.

**حېواني عقل** :- (حَې+وا+نِي+ــ)-[عپ تر-اس-مذ]- هغه عقل چې ځناورو سره تعلق لري. يعنې چې د ځناورو په فطرت يا جبلت کښې شامل دے- لکه د ځينو ځناورو د خپل دښمن پېژندنه- د ځينو ځناورو بغېر د ښودنې جاله جوړونه وغېره.

**وروستے عقل** :- (وَ+رو+سْ+تَے+ــ)-[عپ تر-اس-مذ]- هغه عقل يا پوهه کومه چې د يو کار د خرابېدونه پس سړي ته راشي. کاش دا وروستے عقل ورومبے وے!

**په عقل بور** :- (بې عقله- وارخطا.

سړے چې زړو شي ورنځ ته جوړ شي
که ډېر هوښيار وي په عقل بوړ شي (خوشحال)

**په عقل پردې پربوتل** :- (عقل په پردو کښې نغښتې کېدل- مجازاً عقل نۀ پاتې کېدل- احمق کېدل- د بېوقوفانو په شان کارونه يا خبرې کول.

**په عقل پُوره** :- (پوره عقلمند- هوښيار- ښۀ پوهان.

**په عقل توره شپه غورېدل** :- (په عقل پردې پربوتل- څۀ معاملې ته سوچ فکر نۀ رسېدل.

**په عقل کښې راتلل** :- (۱) په پوهه کښې راتلل- پوهېدل- (۲) داسې کار يا خبره چې د چا عقل ئې نۀ مني- د عقل نه بهر خبره يا کار.

**په عقل نېمګړے** :- (ـــ+نې+مْ+ګَ+ړے)-هغه چې عقل ئې پوره نه وي- کم عقل- ناپوهه- بېوقوف.

**د عقل اسونه زغلول** :- (سوچ او فکر کول.

**د عقل خلاف** :- (داسې کار يا خبره چې عقل سره سمون نه خوري- د بې عقلۍ- د کم عقلتوب.

**د عقل دښمن** :- (چې عقل سره ئې دښمني وي. مجازاً بې وقوف- بې عقله.

**د عقل غـابښ–غابښونه** :- (ـــغا+ښُو/شو+نَ-د ژامې هغه غابښ يا غابښونه کوم چې په ځوانۍ کښې پيدا کېږي.

**د غابښ فتور** :- (ـــ+فُ+تُو+رْ)

**د غـابښ قصـور** :- (ـــ+قُ+صُـو+رْ)- د عقـل نقـص يـا کمـي- بـې وقـوفي- کـم عقلتوب.

**د عقل کار نۀ کول** :- (څۀ کار يا خبره داسې پېښېدل، چې حل ئې په عقل کښې نۀ راځي- تجويز يا حل په پوهه کښې نۀ راتلل.

**د عقل نه بعيده** :- (د عقل نه بهر.

**د عقل نۀ رسېدل** :- (په پوهه کښې نۀ راتلل- د عقل يا پوهې نه بهر «بودل».

**د عقل نه کار اخېستل** :- (د هوښيارتيا نه کار اخېستل- په کوم کار يا معامله کښې سوچ او پوهې سره کار کول.

**د عقل نه لرې** :- (ـــ+نَ+لُ+رې)

**د عقل نه بعيد** :- (ـــ+نَ+بَ+عي+دْ)-(۱) داسې خبره يا کار چې په عقل کښې نۀ راځي. داسې کار يا خبره چې په خيال او فکر کښې نۀ راځي. (۲) د کم عقلۍ خبره يا کار.

**د عقل نيلي زغلول** :- (فکر کول- سوچ کول- د عقل نه کار اخېستل.

**له عقل پلې** :- (بې عقله- کم عقله چې سوچ فکر نۀ لري.

سوارۀ د عقل په براق ختلي دي
لـه عقله پلي په غم نيولي دي (خوشحال)

**له عقل نه بهر** :- (په عقل کښې نۀ راتلونکے- داسې کار يا خبره چې (د چا) عقل ئې نۀ مني.

**عقلا** :- (عُ+قَ+لا-[ع-اس-ج]- د «عاقل» جمع ده. عاقلان- هوښياران

**عقلاً** :- (عَ+قْ+لَ+نْ-[ع-تف]- د عقل له رويه- د عقل مطابق.

**عقلي** :- (عَ+قْ+لِي)-[عف-تر-صف]- (۱) عقل سره متعلق يا عقل ته منسوب- دعقل مطابق. (۲) هغه خبره چې صرف په ذهن کښې موجود وي- په خارج کښې وجود نۀ لري.

**عقلي دليل** :- (ـــ+دَ+لِي+لْ)-[عف-تر-اس-مذ-ج:ونه]- هغه دليل يا حجت چې د عقل او پوهې سره سمون خوري- د عقل مطابق دليل يا حجت.

**عقليه** :- (عَ+قْ+لِي+يَ)-[ع-صف]- عقل سره متعلق يا عقل ته منسوب.

**عقليه دلائل** :- (ـــ+دَ+لا+ئِ+لْ

**عقليـه دليلونـه** :- (ـــ+دَ+لِي+لُو+نَ- هغه دليلونه يا حجتونه کوم چې د عقل سره سم وي- د عقل او پوهې مطابق دليلونه.

**عقليه مرضونه** :- (ـــ+مَ+رَ+ضُو+نَ-[عف-پ-تر-اس-ج]- هغـه ناجوړتيـا ګـانې چې عقل يعنې دماغ سره تعلق لري- دماغي مرضونه چې پکښې د بني ادم پوهه او عقل کار نۀ کوي.

**عقم** :- (عَ+قْ+مْ)-[ع-اس-مذ]- شنډتوب- شنډوالے.

**عقوبت** :- (عُ+قُو+بَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) سزا- عذاب- سرزنش. (۲) په پښتو کښې-اخر- انجام ته وائي. يعنې د عاقبت په ځائے استعمالېږي.

عقوبت کاسه د ظلم نسکورېږي
رسالګي د ازار غشے خطا هم (خواجه محمد)

**عقود** :- (عُ+قُو+دْ)- د ((عقد)) جمع ده.

**عقول** :- (عُ+قُو+لْ)-[ع-اس-ج]- د عقل جمع ده- عقلونه.

**عقيدت** :- (عَ+قِي+دَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) څۀ خبره درسته او صحيح ګڼلو نه پس په دغه خبره زړۀ ټينګ ساتل- د زړۀ يقين او اعتقاد. (۲) د مذهب هغه اصول په کومو چې سړے يقين راوړي نو په هغه مذهب کښې شامل شي، ايمان.

**عقيدت من** :- (ـــ+مَ+نْ)

**عقيدت مند** :- (ـــ+مَ+نْ+دْ)- عقيدت لرونکے- رښتيا او حق ګڼونکے- معتقد- منونکے.

**عقيدت مندي** :- (ـــ+مَ+نْ+دِي)-[ع-ف-تر-اس-مو]- عقيدت لرنه- اعتقاد- يقين لرنه- مننه.

**عقيده** :- (عَ+قِي+دَ)-[و_____ عقيدت]

**عقيده ((بودل))** :- (په چا اعتقاد لرل- په چا باندې پوخ يقين بودل. لکه: زما په دې خبره عقيده ده چې..........

**عقيده خرابېدل** :- (۱) په عقيده کښې خرابے راتلل- په عقيده کښې فرق راتلل. (۲) د مذهب نه بې لارې کېدل- ګمراه کېدل.

**عقيده درستول** :- (۱) عقيده صحيح کول- يقين يا ايمان صحيح کول- بې يقيني د زړۀ نه لرې کول. (۲) د زړۀ نه شك شبه لرې کول- او يو څيز يا کار يا خبره صحيح او رښتوني او حق منل.

**عقيده ښکاره کول** :- خپله نظريه ښکاره کول- هغه خبره ښکاره کول په کومه چې د چا يقين وي.

**عقيده لرل** :- (يقين لرل- صحيح او درست ګڼل.

**پخه عقيده** :- (پَ+خَ+ـــ)- کلکه عقيده- پوخ اعتقاد- په خپل مذهب يا رائې ټينګ والے- پوخ يقين (په چا يا په څۀ)

**زما په عقيده** :- (زما په اعتقاد- زما په خيال يا رائې).

**عقيق** :- (عَ+قِي+قْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) يو قيمتي کاڼے دے. چې شوخ سور رنګ لري- عموماً په ګوتو کښې د غمي په طور لګولے شي- او مهرونه ترې جوړولے شي. (۲) د ښکلي سور رنګ په وجه ورله شاعران د معشوقو شونډو سره تشبيهه ورکوي.

**ديمن عقيق** :- (دِ+يَ+مَ+نْ+ـــ)-(۱) د يمن د ملك عقيق چې ډېر ښکلے او قيمتي ګڼلے شي. (۲) مجازاً- د معشوقې شونډې.

**عقيقه** :- (عَ+قِي+قَ)-[ع-اس-مو-ج:قې]- د ماشوم د زېږېدلو نه پس په اوومه ورځ د ماشوم دنوم کېښودو او د سرکلي دستوره- مربخه- تربحي. (په دې دستوره کښې د هلك دپاره دوه چيلۍ يا ګډان حلالولے شي او د جينۍ دپاره يو چيلۍ يا ګډ- او د هلك د وېښتو په تول سپين زر خېرات کولے شي).

**عقيل** :- (عَ+قِي+لْ)-[ع-اس-صف-مذ-مو:ه]- عقل واله- د عقل خاوند- هوښيار- دانشمند- پوهان- زيرك.

**عقيم** :- (عَ+قِي+مْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- هغه سړے چې بال بچ ئې نۀ پېدا کېږي په نطفه (مني) کښې ئې نقص وي- شنډ- بې اولاده. (په عربي کښې دا لفظ د شنډ سړي او شنډې ښځې دواړو دپاره راځي- خو په پښتو کښې د مؤنث دپاره ورسره تانيثي (ه) هم ضرور لګولې شي).

**عقيمه** :- (عَ+قِي+مَ)-[و_____ عقيم]

**عکاس** :- (عَ+کَ+کا+سْ)-[ع-اس-مذ-ج:ان]- عکس اخستونکے- يا جوړوونکے- تصوير جوړوونکے- مصور- فوټوګرافر.

**عکاس خانه** :- (ـــ+خا+نَ)-[عف تر-اس-مو-ج:نې]- هغه ځائے (کوټه) چرته چې فوټوګان اخستے شي- د فوټوګرافر سټوډيو.

**عکاسي** :- (عَ+کَ+کا+سِي)-[عف تر-اس-مو]- عکس اخستنه- د عکس اخستلو کار يا پېشه- فوټوګرافي- مصوري.

**عکاظ** :- (عُ+کا+ظْ)-[اس-مع-مذ]- په عربو کښې ديو ځائے نوم چې پخوا به پکښې يو بازار يا مېله لګېده- او د لرې لرې خلک به د سود دپاره دغې ځائے ته راتلل (مرېې. وينځې به پکښې هم خرڅېدې او شاعرانو به پکښې د خپلې شاعرۍ کمال هم ښودۀ).

**عِکرِمه** :- (عِ+کْ+رِ+مَ)-[اس-مع]- د مشهور ابو جهل زوے ؤ- د مکې د فتحې په ورځ تښتېدلے ؤ- خو بيا وروستو بېرته راغے- ايمان ئې راوړو او بيا ئې د اسلام دپاره ډېر لوے خدمات وکړل.

عکرمه که تښتېده ډېره له نبيؐ کړه
د کرم قائد راښکلو مصطفٰی ته! (حافظ)

**عکري خېل** :- (عَ+کْ+رِي+خېـل)-[اس-مع]- د کريم خېلو څانګه ده. (کريم خېل- جمال خېل- ملك شاهي- ولي خېل- اتمان زے- درويش خېل وزير دي. په بله شجره کښې دملك شاهي او دولي خېلو په مينځ کښې ((کابل خېل)) هم ليکلي دي- يعني ملك شاهي -کابل خېل- ولي خېل)

**عکس** :- (عَ+کْ+سْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) اړولے- اُلټه- اپوټه. (۲) څېره يا شکل کوم چې په ائينه يا اوبو کښې ښکاري. (۳) تصوير- فوټو.

نۀ ئې فهم فراست وي او نۀ ئې عقل
خالي نقش لکه عکس د معکوس! (رحمان بابا)

**عکس اخېستل** :- (۱) د يو نقش وغېره دپاسه نرے کاغذ کېښښودل- او د لاندېني نقش نقل جوړول. (۲) تصوير اخېستل (په کيمره کښې) فوټو اخېستل.

**عکس اخېستونکے** :- (ـــ+اَ+خِ+سْ+تُو+نْ+کَے)- تصوير اخېستونکے- فوټو اخېستونکے.

**عکس افګن** :- (ـــ+اَ+فْ+ګَ+نْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- عکس اچوونکے- عکس غورزونکے.

**برعکس** :- (بر خلاف- په اړولي رنګ- په بل شان.

**عکس ((بودل))** :- (۱) مخالف ((بودل))- اپوټه ((بودل)). (په عادت- شکل- وغېره کښې) د چانه بالکل اُلټه ((بودل)). دا شعر د تېر شعر عکس دے. (يعني بېخي بدله معنی لري) لکه: دا هلك بېخي د خپل پلار عکس دے. (يعني په عادت کړۀ وړه وغېره کښې د پلار په شان دے. (دا لغت اضداد دے).

**په عکس د** :- (برخلاف- په ضد- مخالف- برعکس.

**ديوبل عکس** :- (د يو بل اپُوټه- د يوبل نه خلاف- د يوبل ضد.

**عکس جوړول** :- (تصويرجوړول- فوټو جوړول.

**عکس کول** :- (ضدکول- رشك يا حسد کول- خبره نۀ منل- مخالفت کول- مخالف کارکول.

**عکس وترد** :- (ـــــ+(سو)+تَ+رَ+دْ)-[عف تر-اس-مذ]- د شعر ديو صنعت نوم دے- چې پکښې د نيمې مصرعې الفاظ اړولي کړي او پاتې نيمه مصرع ترې جوړه کړي- لکه

ستا شونډې دي مېګونې، مېګونې دي ستا شونډې

**عکسي** :- (عَ+كَ+سِي)-[عف تر-صف]- د عکس سره تعلق لرونکے- عکس ته منسوب. د فوټو- په فوټو ګراف (کيمره) جوړ شوے (تصوير)

**عکس تصوير** :- (فوټو- فوټو ګراف)

**علا** :- (عَ+لا)-[ع-صف]- (۱) اوچت- لوړ- بزرګ. (دا لفظ عموماً جل سره يوځاے د الله تعالی د صفت په طور راځي يعنې خداے جل و علا)

**علاج** :- (عِ+لا+جْ)-[ ع-اس-مذ-ج:ونه]- ۱) دارو درمل- درمان- د ناجوړه کس د رغولو دپاره- داروګان وغېره.

**علاج پذير** :- (ـــــ+پَ+ذِي+رْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه مرض وغېره چې دارو ئې کېدے شي.

**علاج په ضد** :- (ـــــ+پَ+ضِ+دْ)-[عپ تر-اس-مذ]- د مرضونو د علاج هغه طريقه په کومه کښې چې د مرض خلاف دارو ورکولے شي- ډاکټر علاج- (انګ: ايلوپېتهي)

**علاج په مثل** :- (ـــــ+پَ+مِ+ثْ+لْ)-[عپ تر-اس-مذ]- هغه علاج چې پکښې د مرض د خلاف دارو په ځاے د مرض مطابق دارو ورکولے شي- هوميوپېتهي.

**علاج کول** :- (۱) دارو درمل کول- د ناجوړه کس يا ځناور د رغولو دپاره داروګان ورکول- درمان کول.(۲) بندوبست کول- تابيا کول- تدبير کول. (۳) سزا ورکول. لکه: که ته نۀ اوړې نو زۀ به دې علاج وکړم.

چې علاج کولے نشي د قسمت څوك

نور به څۀ وائي و چاته نصيحت څوك (رحمان بابا)

**علاج کول د ځان** :- ((طنزاً) تۀ ناجوړه ئې يعنې ستا دماغ کار نۀ کوي- ځکه وائي- چې تۀ د ځان علاج وکړه.

**علاج کېدل** :- (دارو درمل ورکړے کېدل- بيمار )بني ادم يا ځناور) له دوايانې وغېره ورکړې کېدل- درمان کېدل.

**علاج معالجه** :- (ـــــ+مُ+عا+لِ+جَ)-[عف تر-اس-مو-ج:جې]- دارو درمل- د بيمار د رغولو دپاره دوايانې او نور درمان.

**علاج معالجه کول** :- (دارو درمل کول- بيمار (بني ادم يا ځناور) له دوايانې ورکول- درمان کول.

**علاج ناپذير** :- (ـــــ+نا+پَ+ذِی+رْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه بيماري چې علاج ئې ممکن نۀ وي- ناعلاجه (مرض) لاعلاجه (بيماري)

**لاعلاج** :- (۱) هغه مرض يا تکليف چې په دارو درملو هم نۀ رغېږي، نه رغېدونکے چې هېڅ قسم علاج ئې نۀ وي. د علاج نه بهر (۲) هغه ګرانه يا تکليف وغېره چې حل ئې نه وي.

**علاجول** :- (عِ+لا+جَ+ؤ+لْ)-[مص مت]- علاج کول- دارو درمل کول.

**علاقه** :- (عَ+لا+قَ)-[ع-اس-مو-ج:قې]- (۱) د زمکې يوه برخه- سيمه- ملك- صوبه- ضلع- خطه وغېره. (۲) تعلق- تړون- نسبت- پېوند- سرېکار.(۳) مزے- تار وغېره چې مرغلرې يا د تسبيح دانې ورسره تپلې شي. (پښتو کښې کم استعمالېږي).

**علاقه بند** :- (ـــــ+بَ+نْ+دْ)-[عف تر-صف-مذ-ج:ان-(مو):ه]- په کالو وغېره کښې مزي اچوونکے.

**علاقه بندي** :- (ـــــ+بَ+نْ-دِي)-[عف تر-اس-مع)- (۱) په کالو وغېره کښې مزي (تارونه) اچوونکے. (۲) په ملك کښې مختلفې علاقې ونډونه وغېره جوړول- څۀ کار په مختلفو علاقو کښې وېشل- د پټواري کار.

**علاقه ((بودل)) دچا** :- (۱) د چا د اختيار يا د حکم د لاندې ملك يا حلقه ((بودل)). (۲) تعلق يا تړون ((بودل)).

**علاقه تشکيلول** :- (۱) تعلق پېدا کول- (۲) علاقه بندي کول.

**علاقه دار** :- (ـــــ+دا+رْ)-[عف تر-صف-اس-مذ-ج:ان-(مو):ه]- (۱) د يوې علاقې حاکم- هغه کس چې يوه خاص رقبه يا علاقه د هغۀ د انتظام لاندې وي.(۲) علاقه (ملك-رقبه-خطه وغېره) لرونکے.

**علاقه داري** :- (ـــــ+دا+رِي)-[عف تر-اس-مو]- (۱) تعلق لرنه- نسبت لرنه. (۲) د کومې خاصې علاقې يا رقبې انتظام.

**علاقه د خپلولۍ**:- (ـــــ+دَ+خْ+پَ+لْ+وَ+لَ+ئ)-[عپ تر-اس-مو]- د خپلولۍ تعلق- د رشته دارۍ تړون.

**علاقه د دوستۍ** :- (ـــــ+دَ+دُو+سْ+تَ+ۍ)-[عپ تر-اس-مو]- د دوستۍ تعلق- دوستانه تعلق- د يارۍ تړون.

**علاقه غېر** :- (ـــــغېِ+رْ)-[عپ تر-اس-مو]- هغه علاقه يا ملك يا سيمه کومه چې د کوم خاص حکومت د حکم د لاندې نۀ وي. ازاده علاقه- خودمختاره سيمه.

**علاقه قطع کول** :- (تعلق يا تعلقات پرې کول- تعلق شلول.

**علاقه لرل** :- (تعلق لرل- پېوند لرل- تړون لرل- نسبت لرل.

**علاقه لرونکے** :- (ـــــ+لَ+رُو+نْ+کَے)-[عپ تر-اس-فا-ج:کي]- تعلق لرونکے- نسبت لرونکے.

**علاقه من يا علاقه مند** :- (ـــــ+مَ+نْ)-(ـــــ+مَ+نْ+دْ)-[عپ تر-صف-اس-ج:ان-(مو):ه]- تعلق لرونکے- نسبت لرونکے.

**غېره علاقه** :- (وګورئ علاقه غېر.

**په علاقه کښې** :- (په خاص رقبه کښې- په ملك کښې.

**علاقه مندي** :- (ـــــ+مَ+نْ+دِي)-[عپ-اس-مو]- تعلق- نسبت- تړون- دلچسپي.

**علاقه مندي لرل** :- (تعلق لرل- نسبت لرل- تړون لرل- دلچسپي لرل.

**علاقې** :- (عَ+لا+قې)- د علاقه جمع ده- د علاقه اضافي او مجروري وغېره شکل دے.

**د علاقې خاوند – څښتن** :- (۱) تعلق لرونکے. (۲) دسترس لرونکے. (په کومه موضوع کښې د علاقې خاوند)

**علالت** :- (عَ+لا+لَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- ناروغتيا- ناجوړتيا- بيماري- رنځ- مرض.

**علام** :- (عَ+لْ+لا+مْ)-[ع-صف]- (۱) د مبالغې صيغه ده. ډېر لوے علم لرونکے- ډېره پوهه. (۲) دخداے پاك صفت.

**علام الغيوب** :- (ـــــ+مُ+لْ+غُ+يُو+بْ)-[ع تر-اس-مذ]- د غېبو اونۀ ښکاره کېدونکي- څيزونو وغېره علم لرونکے. دخداے پاك صفت دے.

**علامات** :- (عَ+لا+ما+تْ)-[ع-اس-ج]- د ((علامت)) جمع ده. نخښې نښانې- علامتونه- علامې.

**علامات ښکاره کېدل** :- (نخښې نښانې ښکاره کېدل- علامې ښکاره کېدل.

**علامت** :- (عَ+لا+مَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- نخښه- نښانې- نښان- علامه. (پښتو کښې عموماً ((علامه)) وئيلې شي)).

**علامت استفهام** :- (ــــ+اس+ت+ف+ها+م)-[عف تر-اس-مذ]-د تپوس يا د پوښتني علامت يا نخښه-کومه چې د جملې اخر ته ورکولے شي يعنې دا نخښه (؟)

**د تعجب علامت** :- (دَ+تَ+ع+ج+ج+ب+ــــ)-[عپ تر-اس-مذ]- هغه نخښه کومه چې تعجب- حيرانتيا د ښکاره کولو دپاره د جملې اخر ته لګولے شي- يعنې ــــ(!)

**د تقسيم علامت** :- (دَ+تَ+ق+سي+م+ــــ)-[عپ تر-اس-مذ]- هغه علامت چې مراد ترې داوي چې اولنے عدد يا هندسه دې په ورستنۍ عدد يا هندسه ووېشلے شي. يعنې (÷) لکه: ۳۰ ÷ ۵ = ۶

**د جمعې علامت** :- (دَ+جَ+مې+عې+ ــــ)-[عپ تر-اس-مذ]- په رياضۍ کښې د دوو هندسو په خپله کښې د جمع کولو نخښه. يعنې (+) لکه: ۴ +۳ =۷

**د خطرې علامت** :- (دَ+خَ+طَ+رې+ــــ)-[عپ تر-اس-مذ]- هغه نخښه يا ښنانه کومه چې د خطرې ځاے د ښودنې دپاره د خطرې په ځاے کښې لګولے شي. دا علامه يا نخښه د بني ادم کوپړۍ او د دوو ضربي هډوکو په شکل کښې وي يعنې ☠ (۲) داسې اثار چې د کومې راتلونکې خطرې يا تکليف وغيره اظهار ترې کېږي.

**د ضرب علامت** :- (دَ+ضَ+رَ+ب+ــــ)-[عپ تر-اس-مذ]- يو عدد له په بل عدد کښې د ضرب ورکولو نخښه يعنې (X)

**د کارخانې علامت** :- (د+کا+ر+خا+نې+ــــ)-[عپ تر-اس-مذ]- هغه خاصه نخښه کومه چې يوې کارخانې سره مخصوصه وي- تجارتي نخښه. (انګ: ټريډمارک)

**د مرض علامت** :- (دَ+مَ+رَ+ض+ــــ)-[عپ تر-اس-مذ]- هغه نخښې ښنانې د کوم چې د مرض نوعيت معلومولے شي. عموماً دجمعې په شکل کښې (علامتونه) استعمالېږي.

**د منعې علامت** :- (دَ+مَ+نې+عې+ــــ)-د ضرب علامت (x) د منعې په معنیٰ کښې هم استعمالېږي- لکه په لار لګېدلے وي نو مراد ترې دا وي چې په دې لاله تلل منع دي.

**د منفي علامت** :- (دَ+مَ+ن+في+ــــ)-[عپ تر-اس-مذ]- د يو شمېر (تعداد) نه بل کم تعداد د شمېر د لرې کولو نخښه- يعنې (ــــ) لکه: ۷-۳ =۴

**د قيامت علامت** :- (د قيامت نخښه ښنانه.

يــــو ښکاره د قيــامت عــــلامت دادے
په فاعل باندې چې اوس تېرے مفعول کا (خوشحال)

**علامه** :- (ع+ل+لا+مَ)-[ع-اس-مو-ج:مې]- ډېر زيات علم لرونکے- ډېر لوے عــالم يــا پوهــان. (نــن پــرون دا لفــظ عموماً د هغــوي نومونــو ســره استعمالېږي، چا چې د پي.ايچ. ډي (Ph.D) ډګري اخستې وي). دا لفظ اګرچې مؤنث دے خو د مذکر د صفت په طور استعمالېږي.

**د عصر علامه** :- (دَ+ع+ص+ر+ــــ)- د زماني علامه- د وخت ډېر لوے عالم.

**علامه** :- (ع+لا+مَ)-[ع-اس-مؤ-ج: علامې]- علامت- نخښه- ښنانه.

**علامې** :- (ع+لا+مې)-(۱) د ((علامه)) جمع ده. (۲) د ((علامــه)) اضــافي شکل. (۳) د ((علامه)) مجروري وغېره شکل.

**علامې ښکاره کېدل** :- (نخښــې ښــکاره کېــدل- د اصــل څيــز د ښــکاره کېــدلو نــه اول د دغې څيز کومې نخښې ښناني څرګندېدل.

**ترافيکي علامې** :- (ت+را+في+کي+ــــ)-[عپ تر-اس-ج]- هغه علامتونه چې په سړک تلونکو ګاډو وغېره د رهنمايۍ دپاره ځاے په ځاے لګېدلے وي. د ټريفک علامتونه يا نخښې.

**د ترافيکي علامې دي** :- (جملــه) د کــوم خــاص څيــز- واقعــې- پېښــې نخښــې ښناني. لکه: وريځ د يخ باد دباران علامې دي.

**علانيه** :- (ع+لا+ني+ي)-[ع-تف]- په اعلان سره –په ښکاره په ډانګ پئيلې- په ډاګه- په څرګنده.

**علانيه کول څۀ کار** :- (په ښکاره څۀ کار کول- دټولو په مخکښې څۀ کار کول.

**علانيه وئيل** :- (په ښکاره وئيل- په ډانګ پئيلي وئيــل- په څرګنده يا د ټولو په مخکښې وئيل.

**عــلاوه** :- (ع+لا+وَ)-[ع-اس]- (۱) هغــه وروکــے شــان پېټــے چــې د لــوے پېټــې د پاسه کښېښودے شي- سرباري. (۲) مجازاً سوائے- پرتــه لــه- زيــاتي لــه- سربېره. (ځينې خلک د عين زور سره هم وائي چې غلط العام دے)

**علاوه پردغه** :- (د دغې نه علاوه- پرته له دغه- ددغې نه زياتي.

**علاوه کول** :- (زياتول- ور زياتول.

**د دوي نه علاوه** :- (د دوي نه بغېر- چې دا پکښې ونۀ شمېرلے شي نو نور.

**علائق** :- (ع+لا+ئي+ق)-[ع-اس-ج]- (د علاقه جمع) تعلقات- تړون.

علامه د عاشق داده چې بې ياره
نور ئې قطع له عالمه علائق دي (حافظ)

**ثقافتي علائق** :- (د ثقافت سره تړلي تعلقات- ثقافتي تړون يا تعلقات.

**د دوستۍ علائق** :- (د دوستۍ تړون يا تعلقات.

**علائم** :- (ع+لا+ئي+م)-[ع-اس-ج]- د ((علامه)) جمع ده. علامې.

**علت** :- (ع+ل+ل+ت)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) ناجوړتيــا- نــاروغي- بيمــاري- رنځ. (۲) سبب- وجه- باعث. () سبب- وجه- باعث. (۳) خرابے- نقص لکه: ګــران بــې قيمتــه نــه وي او ارزان بــې علتــه نــه وي. (متــل). (۴) ورانــے- شېطاني- شرارت. (علتونه څلور دي- علت مادي، علت صوري- علت فاعلي او علت غائبي.

**علت او معلول** :- (ــــ+او+م+ع+لُو+ل)-[عف تر-اس]- سبب او مسبب وجه او د وجهې نتيجه.

**علت تامه** :- (ــــ+تا+مَ)-[عف تر-اس-مذ]- مکمل علت- پوره سبب.

**علــت تلــل** :- (مــص تــر)-(۱) بيمــاري تلــل- د ناجوړتيــا نــه رغېــدل. (۲) نقص لرې کېدل- عېب نۀ پاتې کېدل.

علت لاړ شــــي عــــادت نه ځي له سړي نه
خدا ے دې نۀ کاندي په بده چار عادت څوک (رحمان بابا)

**علت کېښودل** :- (مص تر)- عېب کښېښودل- عېب لګول- بدنامول.

د عائب مسلمان عېب وئيل غيبت دے
افتراء ده چــې علت پــه بې علت ږدي (حافظ)

**علت کــول** :- (۱) ورانــے کــول- شېطاني کــول- شــرارت کــول. (۲) پــه روان کــار کښې اړيکه اچول- په روان کار کښې خنډ اچول.

**د مشائخ علت** :- (دَ+مَ+شا+ئي+خ+ــــ)-[عف تر-اس-مذ]- يو مرض دے چې د ځينــو بوډاګــانو پــه کُنــه کښــې خــارښ پيــدا شــي- او دا د مفعوليت باعث وګرځي.

**صوري علت** :- (ص+و+ري+ــــ)-[عف تر-اس-مذ]- هغه صورت کوم چې د يو څيز د جوړېدلو نه پس جوړ شي. (صوريه علت هم ورته وائي).

**غائي علت** :- (غا+ئي+ــــ)-[عف تر-اس-مذ]- اصطلاحاً د څۀ کار يا د څۀ څيز فائده- نتيجه- حاصل. (د نورو علتونو نه وروستو غـائي علت په ظهور کښې راځي. خو ذهن او عقل ته د ټولو نه اول راځي). (غائيه علت هم

ورته وائي يعنې چې د کوم غايت يا غرض دپاره جوړ کړے شوے وي.

**فاعلي علت** :- (فا+ع+لي+ـــ)-[عف تر-اس-مذ]- هغه علت يا سبب چې کوم څيز ئې جوړ کړے وي. (فاعليه علت هم ورته وائي).

**مادي علت** :- (ما+دي+ـــ)-[عف تر-اس-مذ]- هغه ماده د کوم نه چې څۀ څيز جوړ شوے وي. (مادي علت هم ورته وائي).

**د علت توري** :- (د+ـــ+تُو+ري)-[عپ تر-اس-ح]- هغه حروفونه يا توري چې د صحيح تورو حرکت ښکاره کوي. (انګ:واولز) دا عموماً الف، واو او ئې ګڼلے شي، خو حقيقي صحيح تورو لـه حرکت ورکوونکي غږونه د دريو نه زيات دي- په پښتو کښې داسې حرکات لس دي. (دې ته دعلت توري څکه وائي، چې د ناجوړتيا يا د درد په وخت عرب وائي. اواز وباسي- او دغه واو الف او ئې دغه توري دي).

**علتي** :- (عي+لْ+لَ+تي)-[عپ تر-صفا]- (۱) علت واله- نقص واله- عيب واله- عيب جن. (۲) سبب واله- باعث ګرځېدونکي. (۳) ورانے کوونکے- شرارتي- شيطاني کوونکے.

**علف** :- (عَ+لَ+فْ)-[ع-اس-مذ-ج: ونه]- ګياه- واښۀ- چاره (د حيواناتو)

**علف چر** :- (چَ+رْ)-[عپ تر-صف-مذ-مو:ه]- (۱) په ګياه يا په شنه څرېدونکي ځناور- علف خوار- علق خور. (۲) مرغزار- چراګاه.

**علف خور** :- (ـــ+خُو+رْ)-[عپ تر-صف-مذ-مو:ه]- ګياه خوړونکے- د حيواناتو هغه قسم کوم چې په ګياه پايي- (غوښه وغېره نۀ خوري).

**علف زار** :- (ـــ+زا+رْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]- هغه ځاے چې واښۀ پـه کښې ډېر پيدا کېږي- ورشو- واښيانه- سبزه زار.

**علف نغرول** :- (واښۀ يا ګياه لواړ لواړ تېرول.

و حلالـــــو حـــــرامـــو ته نظر کړه
سعره نغاړې د چارپاے په دود علف (خ م ب)

**علفي** :- (عَ+لَ+في)-[عف-تر-صفا]- علف سره تعلق لرونکے- ګياه سره تړون لرونکے- ګياه يا شنې ته منسوب- وښو واله- ګياه واله.

**علقه** :- (عَ+لْ+قَ)-[ع-اس-مو-ج:قې]- چکه شوې وينه- (د ماشوم يو حالت کوم چې د مور په ګېډه کښې وي).

**علک خېل** :- (عَ+لَ+کْ+خېل)-[اس-مع]- د ماميا خېلو څانګه ده. (ماميا خېل- شينګي- بهلول زے- محسود دي. (د دې تلفظ «الك خېل» هم کېږي).

**علم** :- (عَ+لَ+مْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- جنډه- بېرغ- نښان.

**علم ايستل** :- (د کربلا د شهيدانو په ياد کښې جنډې پورته کول- او (په جلوس کښې) وړل.

**علم بردار** :- (ـــ+بَ+رْ+دا+رْ)-[عف تر-اس-صف-ج:ان-(مو):ه]- (۱) په لښکر کښې د جنډې وړونکے- د بېرغ وړونکے. (۲) دحضرت علیؓ د زوے حضرت عباس لقب- چاته چې د کربلا په سانحه کښې د امام حسينؓ د طرفه جنډه ورکړې شوې وه.

**علم** :- (ع+لْ+م)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) اګاهي- پوهه- دانش- قوت- مدرکه- واقفيت- خبر. (په سنسکرت کښې څوارلس علمونه او درې ګڼ ښاخونه دي. په عربي کښې نوولس علمونه او درې ښاخونه دي، چې پکښې حرف- نحو- لغت- معاني- بيان- عروض- قافيه- انشاء- رسم الخط- مناظره- قرات- حديث- تفسير- فقه- اصول- کلام- منطق و حکمت وغېره او بيا هئيت هندسه- رياضي- طب- کېميا- نجوم- موسيقي- جبر و مقابله- مساحت- تاريخ وغېره شامل دي.

**علم اليقين** :- (ع+لْ+مُ+لْ+يَ+قِي+نْ)-[عف تر-اس-مذ]- د يقين په دريو درجو کښې اولنۍ درجه ده. يعنې د څۀ خبرې يا څيز په ماهيت يا د کېفيت په حقله محض علم لرل. لکه په زهرو وژلو واله شے. بله درجه عين اليقين ده. يعنې چې په سترګو څۀ څيز ووينې. لکه وګورئ چې يو سړي زهر وخوړۀ نو هغه مړ شۀ. او دريمه او اعلیٰ درجه د «حق اليقين» ده. دا ليدل نۀ دي بلکې په ځان تجربه کول دي- لکه په خپلو غوږونو کښې سکه واچوي او کوڼ شي.

**لدني علم** :- (لَ+دُ+نْ+ني+ـــ)-[اپ-ترا]- هغه علم چې بغېر د لوستې او زده کړې له خداے له طرفه ورکړے شوے وي.

د عــــارف په بخـــره علم لدني دے
په الست ئې روزي شوې بې تحصيله (خوشحال)

**وهبي علم** :- (وَ+هَ+بي+ـــ)- هغه علم چې د خداے پاک له طرفه عطا شوے وي. (له کتاب يا له مکتبه ئې زده کړه نۀ وي شوې).

**د صوت علم** :- (د+صَو++تْ)- د اواز علم لکه د وريځې دګړزهار نه د وريځو فاصله معلومول- يا د توپې د درز نه د دښمن فاصله معلومول.

**د ادب علم** :- (د+اَ+دَ+بْ+ـــ)-[عپ ترا]- (۱) هغه علم چې پکښې د شعر و شاعرۍ په حقله بحث وغېره کولے شي. (۲) د کومې ژبې د نظم او نثر هغه کتابونه چې کوم خاص علم سره ئې تعلق نۀ وي. خو ژبه د ډېرې اوچتې پائې وي.(۳) هغه علم چې پکښې د معاني، بيان- بديع- حرف- نحو -انشا وغېره په حقله بحث کولے شي.

**د اخلاقو علم** :- (د+اَ+خْ+لا+قُو+ـــ)-[عپ ترا]- هغه علم دے چې د دې په ذريعه عادتونه سم شي او ناسته پاسته، خلکو سره تعلق ژوند ژواك- د مجلس قاعدې وغېره د بحث لاندې راوستلے شي.

**د اصواتو علم** :- (دَ+اَ+سْ+وا+تُ+وْ+ـــ)- د غږونو علم په يوه ژبه کښې استعماليدونکي اوازونو په حقله علم- د دې اوازونو پېدا کېدل وغېره تر بحث لاندې راوستلے شي. (فونالوجي- فونېټکس)

**اکتسابي علم** :- (ا+کْ+ت+سا+بِي+ـــ)- هغه علم چې په خپل کوښښ او زيار حاصل شوے وي- يا حاصلولے شي.

**د افلاکو علم** :- (د+اَ+فْ+لا+کُ+وْ+ـــ)- د اسمانونو علم- هغه علم چې د اسمان د ستورو او سيارو سره تعلق لري.

**د الهياتو علم** :- (هغه علم چې پکښې په داسې امورو بحث کېږي چې په تعقل کښې يعنې د غور او فکر په دوران کښې د خارجي وجود يا د مادې محتاج نۀ وي. د مثال په توګه د الله تعالیٰ معرفت- عقل- نفس- يا د دوي کارونه. (۲) د مذهبي خبرو علم. (۳) د معرفت يا فطرت علم.

**د انشاء علم** :- (دَ+ا+نْ+شا+ـــ)- په يوه ژبه کښې د ښکلي ليکلو علم د ښکلو خطونو د ليکولو علم.

**د بحث علم** :- (د+بَ+حْ+ثْ+ـــ)-[و ـــــــــــــ علم منطق]

**د بلاغت يا معاني علم** :- (هغه علم چې پکښې د موقعې او د حال د مقتضا مطابق د مطلب ظاهرولو او خبرو کولو چل ښودلے شي. هغه علم چې پکښې د معاني په اداکولو کښې د وقوع- خطا او د عبارت د اسلوب د کمزورو نه د ځان ساتلو چل ښودلے شي.

**د بوټو علم** :- (د ونو بوټو په حقله علم-(باټني)

**د بيان يا د کلام علم** :- (د خطابت علم- د خبرو کولو علم- د فصاحت علم- د کلام د علم نه هغه علم مراد دے په کوم کښې چې نقلي مقدمې په عقلي دليلونو سره ثابتولے شي.

**د تصوف علم** :- (د+تَ+صَو+وُ+فْ+ـــ)- هغه علم چې د هغۀ په ذريعه بني ادم

تـه د الله د ذات پېژندنـه کېږي. يا دا چې د دغې علم پـه ذريعـه د دنيـا د اشـياؤ پـه حقلـه دا ثابتـه کـړے شـي چـې دا د حق مظاهر دي. د بـاطن د صفايي علم.

**د تعليم علم** :- (عـپ-تر)- د درس د ورکونې علم. د استاذۍ علم.

**د تواريخ علم** :- (د+تَ+وا+رِي+خْ+ـــ)- هغـه علـم چـې د هغـۀ پـه ذريعـه د تېـرې زمـانې د واقعـاتو يـا د پېښـو حـال او د هغـه وخـت (سـن-کـال) وغېـره معلومېږي.

**د جغرافيې علم** :- (هغـه علـم چـې د هغـۀ پـه ذريعـه د زمکې او د زمکې پـه مـخ کوم ځايونه- کلي- ښارونه- سيندونه او غرونه وغېره دي د هغو حال معلوملے شي.

**جفرعلم** :- (دَ+جَ+فَ+رْ+ـــ)-هغـه علـم چې پکښـې د غېبـو د حالاتو نـه خبرېـدے شي.

**د جرمونو علم** :- (د+جَ+رْ+مُ+وْ+نُو+ـــ)-[عـپ تر]- د جرمونو په حقله علـم لکـه دا چې جرمونه ولې کېږي- د دې وجوهات څۀ دي- يـو بنـي ادم ولـې مجرم جوړېږي يا دا چې جرمونه به په کومه طريقه ختم کړے شي وغېره.

**د جنين علم** :- (د+جَ+نِي+نْ+ـــ)-[اپ-تر]- هغه علم چې د مـور پـه ګېـډه کښـې د ماشوم د جوړېدو او د ورئى. کولو وغېره سره تعلق لري.

**د حديث علم** :- (د+حَ+دِي+ث+ـــ)- هغه علم چې پکښـې د حضـورؐ د وينـا ګـانو يـا د عمـل پـه حقلـه معلومـات حاصلېږي- او د ديـو پـه حقلـه بحـث کـولے شي.

**د حکمت علم** :- (د+حِ+کْ+مَ+تْ+ـــ) فلسفه- هغه علـم چـې پکښـې د موجوداتـو (موجود څيزونو) بـاهرنې احوال- او تـر کـومې چـې د بنـې ادم پوهـه رسـي. دهغو د اصل حقيقت پـه حقلـه معلومـات حاصلول او بحث کـول. (پـه دې کښې طبيعيات، رياضي- او الهيات هم شامل دي).

**د حيات علم** :- (د+حَ+يا+تْ+ـــ)-[اپ-تر)- د ژوندانۀ علم- بيالوجي.

**د حيواناتو علم** :- (د ساه لرونکي مخلوق په حقله علـم- د دوي سـاخت قسـمونه- صنفونه- عادتونه وغېره- په حقله معلومات حاصلول.

**د داروګانو علم** :- (د+دا+رُو+ګا+نُ+ـــ)-[عـپ-تر]- د داروګانو علـم- د داروګـانو پېژندنه- دواشناسي.

**د دين علم** :- (د+دِي+نْ)-[اپ-تر]- د دين او مذهب په حقله د خبرو علم

**د دينونو علم** :- (د دينونو علم- د مذهبونو علم.

**د رَمل علم** :- (عـپ تر)- هغه علـم چې د هندسو او خطونو وغېره په ذريعـه د غېبـو حال معلومولے شي- دا علم حضرت دانيالؑ تـه منسوب دے. رَمَـل عربـي. کښې شکې ته وائي. دا علم چونکې جبرائيلؑ دانيـالؑ تـه پـه شـګه د يـو څـو نقطو ليکولو پـه ذريعـه ښـودلے ؤ. پـه دې وجـه ورتـه دا نـوم اخسـتلے شـي. مجازاً نجوم- جوتش هندسه وغېره. (۲) د عروضـو ديـو بحـر نـوم چـې پـه کښې اتۀ ځله ((فاعلاتن)) وئيلے شي.

**د روح علم** :- (د+رُو+حْ+ـــ)-[اپ-تر]- د روح په حقله علم- روحانيات.

**د رياضي علم** :- (د+رِ+يا+ضِي+ـــ)-هغه علم چې پکښې د حساب سره متعلق ټول صنفونه شامل دي. لکه الجبرا- جيوميټري- هندسه. (هغه علم چې پکښـې د هغو خبرو په حقله بحث کولے شي- کومې چې په خارج ښـې خـو د مادې محتاجه نۀ وي- د دې څلور اصول دي. هندسه- حساب- نجـوم او موسيقي او فردعـات ئـې د منـاظرې علـم- جبـر د مقابلـه او د تفصـيل وغېره علوم دي).

**د زمکې علم** :- (هغه علم چې د هغې په ذريعه د زمکې د طبقاتو پـه حقلـه حـالات معلومولے شي.

**د ژبې علم** :- (هغـه علـم چـې د يـوې ژبـې د ماهيـت د دې د اوازونـو قسـمونو- د اوازونو مخروجو وغېره په حقله بحث کولے شـي- لسـانيات- علم الالسنه- زبان شناسي.

**د ستورو- د نجوم علم** :- (د ستورو پېژندنې علم- د نجوم علم- (د هغـه علـم چـې د ستورو د حرکاتو او د ديو د يو ځـاے کېدو وغېره پـه بنيـاد د راتلونکې زمانې يا وخت حالات معلومولے شي.

**د صرف علم** :- (د+صَ+رْ+فْ+ـــ)- هغه علم چې پکښـې د لفظونـو او حرفونـو د بدلون را بدلون وغېره په حقله بحث کېږي- د تصريف علم.

**د طبيعياتو علم** :- (د+طَ+بِي+عا+تو+ـــ)- هغه علم چې پکښې د څيزونـو د خاصيتونو وغېره پـه حقلـه معلومـات حاصـولے او بحـث پـرې کـولے شي. فزکس

**د طب علم** :- (د طبابت علم- د داروګانو او د داروګانو پـه ذريعـه د مرضـونو د علاج علم.

**د عروضـو علـم** :- (۱) هغـه علـم چـې د هغـې پـه ذريعـه د شـعرونو بحرونـو معلـومېږي. (۲) د عـروض نـورې معنـې- بيـت الله، کعبـة الله د مکـې معظمې نوم. (۳) چونکې د دې علم الهام خليل بن احمد تـه پـه کعبـة الله کښې شوے و. ځکه دې علم ته ((د عروض)) نوم ورکړے شو.

**د غېبو علم** :- (د+غَي+بو+ـــ)- هغه علم د کوم پـه ذريعـه چـې د غېبـو (ناليـدلو خبرو حال معلومولے شي. په دې کښې نجوم- جوتش- رمـل- جفـر وغېـره شامل دي. (دا ټول د پخوانو زمانو خلکو وهم دے د غېب علم بې د الله تعالی نه بل هېڅا سره نشته- هو کومې خبرې لکه باران- ږلۍ وغېره پـه معلوماتو چې د مختلفو الاتو پـه ذريعـه معلومـولے شـي هغـه درسـت وي- خو هغه د غېب په علم کښې نه راځي)

چې خبر کا مخلصان له علم غېبه

دا همه واړه الهـام دے د افلاس (رحمان بابا)

**د فقې علم** :- (د شريعت د احکامو واقفيت- د دين علم- د مذهب علم

**د قيافې علم** :- (پ تر)- هغـه علـم چې د مخ او څېرې نـه د زړۀ حالات معلومـولے شي.

**د کلام علم** :- (د+کَ+لا+مْ+ـــ) هغـه علـم چې پکښـې نقلـي مقدمات- پـه عملـي دلائلو سره ثابتولے شي. يعنې منقول علم- د بحث مباحثې يـا د تقريـر او خطابت علم. (د عقائدو علم هم ورته وائي)

**د کېميا علم** :- (د+کي+مْ+يا+ـــ) هغـه علـم چې پکښـې د څيزونـو د اجزاؤ جدا کولو- او ددغو اجزاؤ د يو ځـاے کـولو او پـه دې لـړ کښـې د پېښـېدونکو تبديليو او تفسيراتو په حقله بحث کېږي. (اصلاً د کېميـا پخـوانۍ معنـې دا دي: چې د معمولي قسم دهاتونو نه د سرو زرو د جوړولو علم- دا علم هرکله چې تر اوسه يو ناشونے علم ؤ- ځکه اوس ئـې معنـې بـدلې شـوې- د نتې علم مطابق سرۀ زر جوړېـدے شـي- خـو پـه هغـې د سـرو زرو د اصـل قيمت نه زيات خرڅ کېږي- ځکه څوك دا کوښښ نۀ کوي)

**د لغت علم** :- (د+لُ+غَ+تْ+ـــ)- د يـوې ژبـې د الفـاظو د معنـو او د جوړښت پـه حقلـه علـم- چـې د دې پـه ذريعـه د يـوې ژبـې الفـاظ پـه يـو خـاص ترتيب کښې سره د خپلو مختلفو معنو راجمع کولے شي.

**د مُدُن يـا تمـدن علـم** :- (هغـه علـم چـې پکښـې د ښـار رياسـت او حکومـت د انتظامي کارونو په لړ کښې بحث کولے شي.

**د مرضونو علم** :- (د+مَ+رَ+ضُ+نُ+وْ+ـــ)-[عپ تر]- د مرضونو علم- د ناجوړتيـا ګانو پېژندنه. (انګ: پېتالوجي)

**د موجوداتو يا معدنياتو علم** :- (هغه علم چې د معدني څيزونو په خاصيت پېژندنه او قسمونو بحث کولے شي.

**د موسيقۍ علم** :- (د+مُو+سِي+قۍ+ــــ)- هغه علم چې د خوش اوازۍ، خوش الحانۍ، د مختلفو سازونو د غږونو او مختلفو سرونو، سندرو، راګونو وغېره سره تعلق لري.

**د منطق علم** :- (د+مَ+نْ+طِ+ق+ــــ)- هغه علم چې د هغې په وسيله بني ادم فکر- ذهن او خيالات د خطا او غلطۍ نه محفوظ وساتي. يا د هغو قاعدو علم چې د هغو په استعمال حق، حق او ناحق ناحق ثابت کړے شي. (په دې علم کښې محض په تصوراتو بحث کولے شي).

**د نحو علم** :- (د+نَ+حْ+وْ+ــــ)- هغه علم چې پکښې د (کلام) د جملو د جوړښت او په جملو کښې د الفاظو صحيح ترتيب معلومولے شي، چې د دې په ذريعه د جملې يا د کلام معنې په اسانه او په صحيح ډول په پوهه کښې راشي.

**د هندسې علم** :- (دا د رياضۍ د علم يوه څانګه ده. چې د بدن لرونکو څيزونو جسامت (اوږدوالے- پلن والے- غټ والے) وغېره سره بحث کوي.

**د هيئت علم** :- (د+هَي+اَ+تْ+ــــ)- و ـــــــ د افلاکو علم).

**د علم پګړۍ تړل** :- (په کوم خاص علم (يا په علومو) کښې ماهر کېدل د درس اخيستو نه فارغ کېدل. لوے عالم کېدل- د علم سند اخېستل.

**د علم ښهر** :- (عپ تر-اس)- يو حديث کښې راغلي دي، چې زهٔ (محمدؐ) د علم ښهر يم او عليؓ د دې ښهر ور دے.

محمــــــد د علــــم ښــــهر، دې ئـــې ور ؤ
تــر قنبــر ئــې شـــه خوشــحال ختــک فــلاک

**علما** :- (عُ+لَ+ما)- (وـــــــ علم)

**علمي** :- (ع+لْ+مِي)-[عپ-تر-صف]-(۱) علم سره تعلق لرونکے- علم ته منسوب. (۲) د علم (سائينس) مطابق سائنټفنك. (۳) د لوستنې علم سره تعلق لرونکے- (د عملي ضد)

**علمي درجه** :- (ـــ+دَ+رَ+جَ)-[علمي حېثيت- يعني چې د څومره علم خاوند دے.

**علميت** :- (ع+لْ+مِي+يَ+ت)-[اس-مذ]- علم ((بودل)). علم لرنه. لوے علم لرنه.

علميت د بـــې عملـــه عالمانو
لکه ګنج د کتابونو په خربار شهٔ (رحمان بابا)

**علميت ښکاره کول – څرګندول** :–

**د علميت اظهار کول** :- (د خپل علم څرګندونه کول- په خبرو تقرير يا تحرير کښې داسې انداز خپلول چې د لوے علم يا پوهې څرګندونه ترې کېږي. مجازاً د خپل علم نمائش کول.

**علميت ښودل** :- (۱) د خپل لوے علم څرګندونه کول- وظيفه- راشن. (۲) وابښهٔ.

**علوم** :- (عُ+لُو+مْ)- د علم جمع ده. (وـــــ علم).

**علوي** :- (عَ+لَ+وِي)-[ع-صف]- د حضرت علی کرم الله وجهه اولاد- اصطلاحاً د دې نه د حضرت عليؓ هغه اولاد مراد وي- کوم چې د حضرت فاطمه رضی الله عنها د اولاد نه علاوه وي.

**عُلوي** :- (عُ+لَ+وِي)-[ع-ص]- لوړوالي سره تعلق لرونکے- اسماني- د اسمان سره متعلق- اسمان ته منسوب.

**علوي عالم** :- (ـــ+عا+لَ+مْ)-[عپ-تر-اس-مذ]- د اسمانونو دنيا- هغه عالم چې د ادراك نه بهر دے- د ستورو دنيا- د موجوداتو نه پرته يو ما ورايي عالم.

تماشه د سماوات کړه
وکـــه علـــوي عالم (حافظ)

**علويت** :- (عُ+لُ+وِي+يَ+تْ)-[اس-مذ]- لوړوالے- وچتوالے- رفعت.

**علي** :- (عَ+لِي)-[ع-صف]- (۱) لوړ- اوچت- رفعت واله- لوړ مقام واله (۲) د مسلمانانو په نومونو کښې ډېر راځي. (خو د دې اصل وجه د لفظ معنیٰ نهٔ ده بلکې د حضرت عليؓ نوم دے).

**علي بند** :- (ـــ+بَ+نْ+دْ)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه]- يو قسم کالے دے چې شيعه ګان ئې اکثر په مټ (يا د لېچې په سر) تړي.

**علي غږونه** :- (ـــ غ+ګو/ژو+نَ

**علي ږغونه** :- (ـــ+ژَ+غُو+نَ)-[ع-اس-ج]- د يوې ژبې هغه اوازونه چې په پېدا کولو کښې د کومې نه واخله تر شونډو پورې پکښې هېڅ قسم بندېز نهٔ وي. (انګ:واولز) واولونه. (په پخوانو قواعدو کښې ورته د علت حروف وائي. او دا درې حرفونه (توري) يعني اوازونه ګڼلے شي. خو اصلاً عموماً د دريو نه زيات دي.

**علي مسجد** :- (ـــ+مَ+سْ+جِ+دْ)-[په خېبر کښې يو مشهور مقام- چې يوه قلا هم پکښې جوړه کړې شوې ده. (د ځينو خلکو په خيال حضرت عليؓ دلته راغلے ؤ- او دتله ئې جومات جوړ کړے ؤ. خو دا درسته نهٔ ده. دا بل کوم نېك بزرګ سره تعلق لري).

**علي ملنګ** :- (تش لاسے- مفلس- ډېر غريب.

**عليٰ** :- (عَ+لا-[احرف]- حرف جار (يا جر) دے. د پورته بره د پاسه وغېره معنې ورکوي. (عموماً د عربۍ په مرکباتو کښې راځي).

**عليا** :- (عُ+لْ+يا)-[ع-صف-مو]- د ((اعلیٰ)) تا نيث دے. ډېره لوړه- د ډېرې لوئې مرتبې. (د نورو الفاظو سره راځي).

**عليت** :- (ع+لْ+لِي+يَ+تْ)-[اس-مذ]- علت- وجه- سبب.

**علّيين** :- (ع+لْ+لِي+يي+نْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) د جنت نوم دے. (۲) د اووم اسمان نه بره مقام. (ځينې ورته اتم اسمان هم وائي) چې ښکته حصه ئې سدرة المنتهیٰ څخه ده. او برنې سر ئې عرش سره لګېدلے دے ويلې شي چې د ښو خلکو روحونه د مرګ نه وروستو دغې ځاے ته ځي.(۳) د عليه جمع ده. لوړ- ډېر لوړ- د جنت لوړ لوړ کورونه او د هغو کړکۍ دريچې.

**عليين مکان** :- (ـــ+مَ+کا+نْ)-[ع تر-صف]- هغه کس چې د مرګ نه پس ورله خداے پاك دغه لوړ ځاے ورکړے وي.

**عليـــــون** :- (ع+لْ+لِي+يُـــو+نْ)-[ع-ص]- (۱) اوچـــت- لـــوړ- ډېـــر اوچـــت. (۲) (اس-مذ)- د اووم اسمان نه په بره حصه- هغه ځاے چرته چې د خلکو اعمال نامې ساتلې شي. (۳) اعمال نامې. (۴) د اسمانونو اوسېدونکي- فرښتې.

**عمــــاد** :- (عَ+مـــا+دْ)-[ع-اس-مــذ-ج:ونــه]- (۱) ســـتن (د کـــوټې وغېـــره) (۲) په القابو کښې نورو الفاظو سره راځي. (۳) د نارينه ؤ په نومونو کښې هم استعمالېږي.

**عمال** :- (عُ+مْ+ما+لْ)-[ع-اس-ج]- د عامل جمع- عاملان- کړونې- د حکومت کارنده يا ايجنټان- د مالي معاملاتو کارکوونکي- تحصيلداران.

**عمامه** :- (عَ+ما+مَ)-[ع-اس-مو-ج:عمامې]- پټکے- پګړۍ-دستار- پنډوس- خرېه.

**عمان** :- (عُ+ما+نْ)-[اس-مع]- (۱) د يو اسلامي ملك نوم. (۲) د عمان ملك سره پيوست سمندر- بحر عمان.

په چمته کښې لوے غر ځاے کا
په کـــوزه کښـــې بېدي عمـــان (خوشحال)

**عمر** :- (عُو+م+َرْ)-[ع-مذ-ج-ونه]- (۱) د يو ساه واله څيز د پيداوښت نه واخلې تر مړکېدو پورې زمانه يا وخت. (۲) د پيداوښت نه تر يو خاص وخته پورې د تېر شوي وخت اندازه (کلونه مياشتې وغېره). (۳) وخت- وقفه. (۴) د مسلمانانو نارينه ؤ د نوم برخه هم وي.

**عمر اخرکېدل** :- (بوډاکېدل- زړو عمر ته رسېدل.

**عمر پوره کېدل** :- (د ژوند مقرره وخت سرته رسېدل- د مرګ وخت راتلل- مړ کېدل.

**عمر تېرول** :- (ژوند تېرول- د خپل ژوند وخت اړول- ژوند کول- د ژوند ورځې شپې تېرول.

**عمر تېرېدل** :- (د ژوند وخت تېرېدل.

عنکبوت غـــوندې اسير په نرې تاريم
عزيز عمر مې تېرېږي په خوارۍ کښې (حافظ)

**عمر خوړل** :- (۱) عمر تېرول- د ژوند اړول. (۲) د عمر يا د ژوند وخت سرته رسول. لکه چې څۀ څيز ټول وخوري او هېڅ باقي پاتې نۀ شي لکه فلانې خپل عمر اوس خوړلے دے.

**عمر سر ته رسېدل** :- (د ژوندون وخت اخري سرته رسېدل- مرګ ته ور لنډېدل.

**عمر ګران (بودل) چاسره** :- (چاسره يو ځاے عمر (وخت) تېرول- د تکليف باعث (بودل). لکه: د فلانې عمر اوس فلانې سره ګران دے.

**عمر ګزران کول** :- (عمر تېول- دژوند وخت تېرول. ورځې شپې اړول.

په تنګدستۍ مې د دنيا عمر ګزارن کړې دريغه
کـــه فراخـــي فـــرح هـــوري په عرصات راشي (حافظ)

**عمر موندل** :- (ډېر عمر لرل.

**عمر جاويداني** :- (جا+وي+دا+ني+ــــ)-[اعپ تر- اس-مذ]- تل پاتې کېدونکے عمر- د همېش ژوند- تل ترتله ژوند.

**درست عمر** :- (د+ر+سْ+تْ+ــــ)

**ټول عمـر** :- (ټو+لْ+ــــ)- تمام عمر- تېر شوے يا راتلونکے ټول ژوند. دا د ماضي اومستقبل دواړو دپاره راځي. لکه: درست عمر مې په عبادت کښې تېر شۀ. يا درست عمر به په عبادت کښې تېر کړم.

**د نوح عمر** :- (ــــ+د+نُو+حْ)-[اعپ تر-اس-مذ]- د نوح عليه السلام عمر- وائي چې د حضرت نوح عليه السلام عمر نهه نيم سوه کاله ؤ. مجازاً ډېر اوږد ژوند- ډېره اوږده زمانه.

**طبعي عمر** :- (طَ+بِي+عي+ــــ)-[اعف تر-مذ]- هغه عمر چې خداے پاك د چا دپاره فطري طور سره مقرر کړے دے د نبي ادم طبعي يا طبيعي عمر شپېړشلې کاله ټاکلے شوے دے.

**تر عمر عمر** :- (تَ+رْ+ــــ+عُ+م+َرْ)- تر ټول عمر- تر درست عمر پورې- تر مرګه پورې.

**د عمر ارمان** :- (د عمرونو ارمان- يعنې ډېر پخوانے خواهش.

**د عمر ټال شلېدل** :- (عمر ختمېدل- مړ کېدل.

بې پروا پرې داسې مه زانګه جنابه
عاقبت به دې راشلېږي ټال د عمر (کاکاخېل)

**د عمر وفا کول** :- (مراد ترې ژوندے پاتې کېدل دي.

**د کچه عمر هلك** :- (د لږ عمر هلك- وړوکے- نابالغه.

**عمران** :- (ع+مْ+را+نْ)-[ع-اس-مذ]- ابادي- تعمير- وداني. د حضرت موسى عليه السلام د پلار نوم. د حضرت مريم عليه السلام د پلار نوم.

**عمرانات** :- (ع+مْ+را+نا+تْ)-[ع-اس]- د عمران جمع- ډېرې ابادۍ.

**عمراني** :- (ع+مْ+را+نِي)-[اصف]- ابادۍ سره متعلق- ودانۍ متعلق ودانۍ ته منسوب.

**عمرانيات** :- (ع+مْ+را+نِي+يا-تْ)-[اس-جم]- د اباديو په حقله علم.

**عمرونو** :- (عُ+مْ+رُو+نو)-[د (عمرونه) اضافي مجروري وغېره شکل.

**تر عمرونو پورې** :- (تر ډېرو عمرونو پورې. تر ډېر اوږد وخته پورې. تل- تل ترتله- همېش له.

**عمرونه** :- (عُ+مْ+رُو+نَ)-د (عمر) جمع ده. ډېر عمرونه. مجازاً ډېر زيات اوږد وخت.

**عمره** :- (عُ+مْ+رَ)- [د عمر بدل شکل دے- چې د له وغېره- مغيره ؤ تورو سره راځي.

**عمـره** :- (عُ+مْ+رَ)-[ع-اس-مو-ج: رې]- د حج په شان يو خاص عبادت دے، چې د حج د ورځو نه علاوه په نورو ورځو کښې کولے شي- په دې کښې د حج ټول مناسك نۀ ادا کېږي. د دې قاعده داسې ده چې عمره کونکے د مکې نه احرام وتړي تنعيم نومې ځاے ته لاړ شي- چې د مکې نه درې کروهه لرې دے. هلته يو څو رکعته نمونځ وکړي- او بيا په ستنه مکې ته راشي- او د خانه کعبه طوافونه کوي. د صفا او د مروه نومې غونډو ترمېنځه منډې وهي. په حج کښې ځينې کارونه د دې نه زياتي کولے شي.

**عمـري** :- (عُو+مْ+رِي)-[اعپ تر-صف]- (۱) عمر سره تعلق لرونکے- عمر ته منسوب. (۲) د درست عمر- د ټول عمر.

**ټول عمر** :- (د درست عمر- د ټول عمر دپاره- ټول عمر سره تړون لرونکے.

**عمرے** :- (عُ+مْ+رے)-[الاحقه]- لاحقه ده. د نورو الفاظو نه وروستو راځي. او د عمر معنٰی ورکوي.

**پوخ عمر** :- (پو+خْ+ــــ)-[اصف]- د پوخ عمر- هغه سړے چې د ځوانۍ د عمر نه اوړېدلے او بوډاوالي ته نزدې شوے وي.

**کچ عمر** :- (کَ+چْ+ــــ)-[اصف]- د لږ عمر- چې لاځوانۍ ته نۀ وي رسېدلے.

**عمـل** :- (عَ+مَ+لْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) کار- فعل. (۲) کاروائي- تعميل. (۳) عادت- معمول. (۴) جادو- منتر- ټونه. (۵) اثر- تاثير (۶) نشه- د نشې اثر- يا نشه کونه. (۷) وخت- مال.

**عمل دار** :- (ــــ+دا+رْ)-[اعف تر-اس-مذ-ج:ان]- عمل لرونکے- اختيار مند- حاکم- عامل- د حکومت د طرفه مقرر شوے يو افسر. (نن صبا ئې استعمال نشته).

**عمل داري** :- (ــــ+دا+رِي)-[اعف تر-اس-مو]- (۱) عمل لرنه- اختيار لرنه- حکومت- حاکمي. (۲) ولقه- علاقه- د حکم د لاندې خاص علاقه- رياست.

**عمل دخل** :- (ــــ+دَ+خْ+لْ)-[اعف تر-اس-مذ]- اختيار- حکومت- قبضه.

**عمل دخل لرل** :- (اختيارلرل- په کوم کار يا ځاے کښې اختيار يا اثر لرل- قبضه لرل- حکم چلېدل.

**عمـل کـول** :- (۱) د وينا وغېره مطابق کار کول- کار کول- په عمل کښې راوستل. (۲) اثر کول.

**په عمل کښې راتلل** :- (يو تجويز- منصوبه يا خيال په عملي شکل کښې ښکاره کېدل.

**په عمل کښې راوستل** :- (استعمالول- کوم تجويز- منصوبه وغيره- په عملي شکل کښې راوستل.

**عملي** :- (عَ+مَ+لِي)-[عپ- تر-اس-مذ-ج:ان]- (۱) عمل کونکے- مجازاً نشه کونکے- نشه باز- نشه يي- چرس- بنگ وغيره څښونکے. (۲) په عمل کښې راتلونکے- په عمل کښې د راتلو ور په تجربه کښې راتلونکے- (د نظر ئي يا د کتابي لوستې په مقابله کښې پرېکټيکل (انگ)

**عملي سائينس** :- (ــــ+سا+ئي+نْ+س)-[په تجربو سره زده کولے شي. د کتابي علم په مقابله کښې- پرېکټيکل سائينس)

**عملي کول** :- (په عمل سره (څۀ کار) کول- مشق کول.

**عملي کېدل** :- (څۀ کار) په عمل سره کول يا سرته رسول- مشق کول.

**عملي کېدۀ** :- (ــــ+کې+دْ+ۀ)-[په عمل کښې راتلۀ- عملي صورت اختيارونه

**په عملي توگه** :- (د عمل په طور- عملاً- د مشق په طور.

**عمليت** :- (عَ+مَ+لِي+یَ+تْ)-[اس-مذ]- عمل- عمليه.

**عمليات** :- (عَ+مَ+لْ+يا+تْ)-[عف تر-ج]- د (عمل) جمع ده. مجازاً د جادو منتر کارونه- ټوني ټاني- تعويذونه وغيره ليکل.

**عملياتو** :- (عَ+مَ+لِي+يا+تو)-[د (عملياتو) اضافي او مجروري وغيره شکل دے.

**عملياتي** :- (عَ+مَ+لْ+لي+يا+تي)-[عف تر-صف]- هغه کار وغيره چې عملياتو سره تعلق لري- د عملياتو.

**عمود** :- (عَ+مُو+دْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) ستن- (د کوټې وغيره). (۲) د تنبوستن. (۳) هغه نېغ (مستقيم) خط کوم چې په بل نېغ خط دپاسه داسې ودرولے شي چې دواړو غاړو ته زوايې يې پخپلو کښې برابر وي. (دا زاويې د نوي نوي درجو وي).

**عموداً** :- (عَ+مُو+دَ+نْ)-[ع-تف]- د عمود په طور- د عمود په شکل کښې نېغ ولاړ- قايمه زاويه جوړولو په شکل کښې.

**عمودي** :- (عَ+مُو+دي)-[اس-صف]- هغه خط يا بل کوم دېوال وغيره چې د عمود په شکل کښې وي- يعني نېغ د قايمې زوايې په شکل کښې ولاړ وي.

**عموديت** :- (عَ+مُو+دي+یَ+تْ)-[ع-اس-مذ]- د عمود خصوصيت.

**عموره** :- (عَ+مُو+رَ)-[اس-مع]-د پخوانۍ زمانې د يو ښار نوم- په کوم کښې چې د لوط عليه السلام قام اباد ؤ. دا قام ډېر بد عمله ؤ- او د حضرت لوط عليه السلام پند او نصيحت ئي نۀ مانۀ، نو اخر دخدا ے پاك عذاب پرې راغے او دغه ښار او خلک ئي هلاك او تباه شول.

**عموم** :- (عُ+مُو+مْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) عام کېدنه- عام ((بودنه)) هر ځاے کښې ((بودنه)) په ټولو کښې شامل ((بودنه)). (۲) عام- ټول

**عموماً** :- (عُ+مُو+مَ+نْ)-[ع-تف]- عام طور سره- اکثر.

**عمومي** :- (عُ+مُو+مِي)-[عف تر-صف]- (۱) عموم سره تعلق لرونکے- عموم ته منسوب. (۲) عام په هر ځاے کښې- يا هر څۀ کښې.

**عمومي ادبيات** :- (ــــ+اَ+دَ+بي+يا+تْ)- هغه ليکونه چې عام ادب سره تعلق لري- (جنرل لټرېچر).

**عمومي غونډه** :- (ــــ+غو+نْ+ډَ)

**عمومي مجمع** :- (ــــ+مَ+جْ+مَ+(ع))

**عمومي مجلس** :- (ــــ+مَ+جْ+لِ+س)- هغه غونډه يا د خلکو جمع کېدنه- چې د عامې قاعدې مطابق راجمع شوي وي. (د خصوصي غونډې (وغيره) په مقابله کښې).

**عموميت** :- (عُ+مو+مِي+یَ+تْ)-[ع-اس-مذ]- عام والے- (د خاص والي په مقابله کښې)- عموم لرنه.

**عموميت پيدا کول** :- (عام کېدل- هرچاته يا هر طرف ته رسېدل- (د خصوصيت په مقابل کښې)

**عموميت لرل** :- (عام ((بودل)) عموم لرل- په ټولو خود ((بودل))

**عُميا** :- (عُ+مْ+يا)-[ع-صف]- ړوند- په سترگو کور.

چې دا حال ويني په سترگو
ولـــې هســـې ئـې عميا (خوشحال)

**عناب** :- (عُ+نا+ب)-[ع-اس-مذ]- (۱) د بېرو په شان يوه شوخ سُورنگ واله مېوه ده- په داروگانو کښې استعمالېږي. (۲) کنايةً- د معشوقې شونډې.

**عنابي** :- (عُ+نا+بي)-[عف تر-صف]- (۱) د عناب په شان- عناب سره منسوب. (۲) تك سُور رنگ (چې قدرې تور والے هم راوړي- دا د مختلفو څيزونو نه جوړولے شي).

**عناصر** :- (عَ+نا+ص+رْ)-[ع-اس-ج]- د عنصر جمع ده. عنصورنه- بينادي اجزاء

**عنايت** :- (عِ+نا+یَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه-عنايات]- (۱) مهرباني- لطف- شفقت. (۲) توجه- التفات. (۳) ورکړه- عطا. (۴) د مسلمانانو نارينه ؤ په نومونو کښې راځي (د ځينو زنانه ؤ په نوم کښې هم راځي). (اصلاً: تکلف کښل- د چا دپاره رنځ کېدل.

**عنب** :- (عِ+نَ+بْ)-[ع-اس-جم]- انگور- کور (مشهوره مېوه).

**عنبر**: د دې وضاحت هم پوره نۀ دے

وائي چې د ((وهېل)) کب د دانې نه وځي چې دغه دانه ښه شي- نو پرچ ترې جدا شي- او په سمندر کښې بهېږي او چې خلق ئي ووينې نو راوايې خلې.

**عنبر اشهب** :- (ــــاَ+شْ+هَ+بْ)-[عف تر-اس-جم]- اعلیٰ قسم عنبر- چې رنگ ئي تور وي خو ډېر سوچه نۀ وي (څۀ قدرې پيکه وي) داروگانو کښې استعمالېږي.

**عنبر سارا** :- (ــــ+سا+را)-[عف تر-اس-جم]- خالص عنبر- صفا شوے عنبر.

هار د جــواهـرو دوه لړې دمرغلرو
تور وربل ؤ ولې زلفې ئي عنبر سارا (خوشحال)

**عنبرين** :- (عَ+نْ+بَ+ري+نْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- (۱) د عنبرو په شان خوشبويه- ډېر خوشبوداره. (۲) په عنبرو سره خوشبويه کړي- په عنبرو معطر. (۳) د عنبرو په شان رنگ لرونکے -تور- توربخن.

**عندليب** :- (عَ+نْ+دَ+لِي+بْ)-[ف-اس-مذ-ج:عنادل]- بلبل- بلبله.

بر امد ورباندې صوت د غراب شۀ
خـوشامــد ورته اواز د عندليب (خوشحال)

**عنديه** :- (عِ+نْ+دي+یَ)-[ع-اس-مو-ج:ئې]- څۀ په زړه کښې وي- منشا- اراده- نيت- منصوبه- نظريه. (اصلاً د ((عندي)) (زما په نزد) نه اخستے شوے دے).

**عنديه ثرگندونه** :- (د خپل زړۀ اراده نيت يا رائې ښکاره کول.

**عنديه معلومول** :- (رائې معلومول- منشا معلومول- دچا د زړۀ خبره يا اراده معلومول- نظريه معلومول.

**عنديه معلومېدل** :- (د چا د زړۀ اراده- نيت يا رائې ښکاره کېدل.

**عنصر** :- (عَ+نْ+ص+رْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه- عناصر]- اصل بنياد- د څيزونو بنيادي جز چې مرکب نه وي. (د پخوانو خلکو په نزد، صرف څلور عنصرونه وو. يعني خاوره- اوبۀ- هوا او اور- خو د نوي تحقيقاتو له رويه

په دې کښې يو هم عنصر نه دے- دا ټول مرکبات دي- داصل عنصرونو شمېره اوس د سلو نه اوړېدلې ده.

**عنعنات** :- (عَ+نْ+عَ+نا+تْ)-[ع-اس-جم]- د ((عنعنه)) جمع ده.

**عنعنه** :- (عَ+نْ+عَ+نَ-[ع-اس-مو-ج:نې]- (۱) روايت- نقل په ترتيب سره د څو تنو له قوله د حديث يا روايت نقل. (۲) دور- رسم- رواج- عرف- لاره- تره. (۳) په نظم او ترتيب سره د نيکه ګانو د وياړونو ترڅه.

**عنفوان** :- (عُ+نْ+فُ+وا+نْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) د هرڅيز شروع –اغاز. (۲) طاقت- زور.

**عنقا** :- (عَ+نْ+قا)-[ع-اس-مذ]- (۱) د يو فرضي مارغۀ نوم دے- چې نوم ئې شته وجود ئې نشته. (وائي چې د دې نوم اصل (عنق) دے. يعني دا يو لوئې مرۍ واله مرغۀ وۀ- چې اوس ورک دے- د دې مارغۀ په حقله عجيبه عجيبه قيصې مشهورې دي. خو ټولې بې اصله او بې بنياده افسانې دي). (۲) مجازاً: هرهغه څيز ته وائي- کوم چې بېخي نايابه وي- او نۀ موندے کېږي- يا داسې ورک شي چې لاس ته نۀ راځي- لکه: د مرغۍ پۍ.

**عنقا کېدل** :- (ورکېدل- غېبېدل- بېخي نايابه کېدل- نۀ موندلے کېدل

چې عنقا شو اهل دل په دا دنيا کښې
ترو به څۀ وائي و چا وته احوال څوک (رحمان بابا)

**عنکبوت** :- (عَ+نْ+کَ+بُو+تْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) جولا- جولاګے- غنې- مشهور ځناور چې ډېر قسمونه ئې دي- خوشي ځايونو کښې د نرې تارونو (چې پخپله ئې جوړوي) داسې جالې (جالونه) جوړ کړي چې په نظر نۀ راځي. مچان، ماشي وغېره پکښې ونښلي او ددۀ خوراک شي.(۲) د قران پاک د يو سورت نوم.

عنکبوت د غار په خولۀ تنسته وکړه
بل په هاؤ بـــاندې ناسته حمامه ده (خواجه محمد بنګش)

**عنوان** :- (عُ+نْ+وا+نْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) سرنامه- سرخط- سرخي- د هرڅيز اول. (۲) طور- طريقه.

**عواطف** :- (عَ+وا+ط+فْ)-[ع-اس-ج]- د ((عاطفه)) جمع ده. مهرباني. ((خپل ژور عواطف په غاړو کښې ځرګندوي))

**عواقب** :- (عَ+وا+ق+بْ)-[ع-اس-ج]- د ((عاقبه)) (يا عاقبت) جمع ده. عاقبه د پښې شاتنې طرف ته وائي. د هر څيز اخر يا شاته طرف. ورستو يا شته راتلونکي څيزونه- د کارونو انجامونه- خاتمې.

**عوام** :- (عَ+وا+مْ)-[ع-اس-ج]- د ((عامه)) جمع ده. عام خلک. عام وګړي- عام اولس.

**عوام فريب** :- (ـــ+فَ+رِي+بْ)-[عف-تر-صف]- عامو خلکو له دوکه ورکوونکے.

**عوام فريبي** :- (ـــ+فَ+رِي+بِي)-[عف-تر-اس-مو]- عامو خلکو له دوکه ورکول- عام ساده خلک تېرباسل.

**عوام الناس** :- (ـــ+مُ-نْ+نا+سْ)-[ع-تر-اس-جم]- عام خلک- عام اولس.

**عوامـــل** :- (عَ+وا+م+لْ)-[ع-اس-ج]- د ((عامــــل)) جمــــع ده. (۱) کارنــــده- کارکوونکي- حاکم. (۲) عامل حاکم ته هم وائي.

په خوردن او په خفتن کښې له چارپايے برابر مه شه
د عمل پـــه کـــاروبـــار کښې مه شه کم تر عوامله (خوشحال)

**عوامي** :- (عَ+وا+مِي)-[عف-تر-صف]- عوامو سره تعلق لرونکے- عوامو ته منسوب- د عامو خلکو- د عام اولس.

**عوائب** :- (ع+وا+ئ+بْ)-[ع-اس-ج]- د ((عيب)) جمع ده. عېبونه. (و ـــ عېب)

**عوائـــق** :- (عَ+وا+ئ+قْ)-[ع-اس-ج]- د عـــائق- عائقـــه جمـــع ده. موانـــع- ايساروونکي- منع کوونکي- خنډان- اړيکې.

چـــې ئـــې قطع عوائق کړل
په اسمان کښېناست عيسیٰ (خوشحال)

**عود** :- (عُو+دْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) يو خوشبو دار لرګے چې په اور د سوځېدو سره خپله خوشبو پرېږدي- دا په هند او چين کښې پيدا کېږي. (۲) بربط- د عربو يو ساز- وائي چې د عربي عود اصلي رېښه پښتني رباب دے.

څو سپند نۀ شي په اور کښې
نۀ وي خوند د بوي د عـــــود (رحمان بابا)

**عودي** :- (عُو+دِي)-[عف-تر-صف]- د ((عود)) په شان رنګ لرونکے- تور (په پښتو کښې ((اودي)) جدا رنګ دے. عودي سره تعلق نۀ لري.

**عورت** :- (عَو+رَ+تْ)-[ع-اس-مو]- د بني ادم د بدن هغه حصه چې ښکاره کول ئې شرم ګڼلے شي. پټ اندام- د ستر ځاے- ښځه.

**عورته** :- (عَو+رَ+تْ)-[عپ-تر-اس-مو-ج:تې]- ښځه- مانديني- ماينه.

**عوض** :- (ع+وَ+ضْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) بدل- معاوضه. (۲) انتقام- بدله.

**په عوض کښې** :- (پَ+ـــ+کې+ښې)- په بدل کښې- د يو څيز په ځاے بل څيز- د يو کار په ځاے بل کار.

**په عوض ورکول** :- (په بدل ورکول- په بدله کښې ورکول- سره بدلول.

**عوضانه** :- (ع+وَ+ضا+نَ)-[عف-تر-اس-مو]- بدله- معاوضه- د يو څيز په بدل کښې بل څيز- د بدل څيز.

**عوضي** :- (ع+وَ+ضِي)-[عپ-تر]- بدلون- بدله- بدل کښې- قائم مقام.

**عهد** :- (عَ+هْ+دْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) زمانه- وخت. (۲) قول- اقرار- لوظ.

**عهدنامه** :- (ـــ+نا+مَ)-[عف-تر-اس-مو-ج:ې]- هغه کاغذ چې د کومې معاملې په حقله لوظ قول شرطونه ليکلي شوي وي او د دواړو اړخونو متعلقه کسانو پرې دستخطونه کړي وي- ليکلے شوې لوظ نامه.

**عهد عتيق** :- (ـــ+عَ+تِي+قْ)

**عهد قديم** :- (ـــ+ق+دِي+مْ)-[عف-تر-اس-مع]- د بائيبل هغه برخه چې پکښې تورات او د نورو پخوانو پېغمبرانو صحيفې شاملې دي. (يهوديان فقط دا برخه مني) (بلې برخې ته عهد نامه جديد وائي- چې په کښې څلور انجيلونه او څۀ نور ليکونه دي- عيسايان دواړه برخې مني)

**عهد کول** :- (وعده کول- قول اقرار کول- لوظ کول- ژبه کول.

**عهد کول د ځان سره** :- (خپل ځان سره قول اقرار کول په زړۀ کښې پوخ عهد يا نيت کول- پخه اراده کول.

**عهد ماتول** :- (قول اقرار ماتول- لوظ قول ماتول- بې وعدې کېدل- بې ژبې کېدل.

**په عهد کښې** :- (په زمانه کښې- په وخت کښې د حکومت وغېره په دوران کښې.

**د طبقات الارض په دريم عهد** :- (د زمکې د مختلفو طبقو د جوړېدلو دريمه زمانه يا دور.

**عهده** :- (عَ+هَ+دَ)-[ع-اس-مو-ج:دې]- (۱) مرتبه- منصب- سرکاري منصب. (۲) ذمه- ذمه داري.

**عهده دار** :- (ـــ+دا+رْ)-[عف-تر-اس-مذ-ج:ان- (مو):ه]- عهده لرونکے- د منصب خاوند- افسر.

**عهود** :- (عُ+هُو+دْ)-[ع-اس-ج]- د ((عهد)) جمع ده. (و ـــ عهد)

**عيادت** :- (ع+يا+دَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- د ناجوړه سړي تپوس- پوښتنه-

بیمار پرسي.

**عیادت کول** :- (د بیمار تپوس کول- د ناروغه کس حال احوال معلوموول- پوښتنه کول.

**عیاذاً بالله** :- (ع+یا+ذَ+نْ+ب+لْ+لا+ه)-[ع-جمله]- د الله پاك پناه- د خدای پناه ځینې غواړم- یا خدای چې دې تر ې وساتي.

**عیار** :- (ع+یا+رْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) زرکاڼی- هغه کاڼی چې زر پرې ومږي- نو نخښې پرې جوړې شي- د دغې نه د زرو کره کوټه معلوم شي. (۲) د سرو او سپینو زرو د تللو وړه تله- کنډه.

**عیار** :- (عَ+يْ+یا+رْ)-[ع-اس-مذ-ج:ان-(مو:ه)]- چالاك- مکاري- هوښیار- دوکه مار.

**عیاري** :- (عَ+يْ+یا+ري)-[اعف تر-اس-مو]- چالاکي- مکاري- دوکه ماري- فن فریب.

**عیاش** :- (عَ+يْ+یا+شْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- (۱) عیش کونکی- ډیر عیش کونکی- په ښه شان سره ژوند تیرونکی. (۲) بد چلنده- شرابي- رنډي باز- تماش بین- شهوت پرست- فضول خرڅه.

**عیاشي** :- (عَ+يْ+یا+شي)-[اعف تر-اس-مو]- (۱) عیش عشرت کول- ډیر ښه ژوند تیرول. (۲) بد چلندي- شرابي توب- رنډي بازي- تماش بیني- شهوت پرستي- فضول خرڅي- په خرابو کارونو دولت الوځونه.

**عیاشي کول** :- (۱) په عیش سر ژوند تیرول. (۲) تماش بیني کول. رنډي بازي کول- شراب کباب کول- فضول خرڅونه کول- په خرابو کارونو دولت الوځول.

**عیال** :- (ع+یا+لْ)-[ع-اس-جم]- بال بچ- ښځه او بچي- متعلقه خلك.

گوره څه چارې ئې وکړې
په عیــــال د خپل پدر (رحمان بابا)

**عیان** :- (عَ+یا+نْ)-[ف-صف-مذ-مو:ه]- په سترگو لیدل یا کتل- مجازاً ظاهر ښکاره- ښکاره.

**عیان کول** :- (ښکاره کول- ښکاره کول- ظاهرول.

**عیان کېدل** :- (ښکاره کېدل- ښکاره‌یدل- ظاهریدل.

**عیب** :- (عَي+بْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) د هنر نقیض دی- بدي- بدوالی- خراب- نقص- نقصان کمی. (۲) بد-گناه- غلطي.

**عیب بودل** :- (نقص (بودل) کمی ((بودل)) خرابی ((بودل)).

**عیب بین** :- (ـــــ+بِي+نْ)-[اعف تر-صف-مذ-مو:ه]- عیب کتونکی- په عیب نظرلرونکی- عیب لټونکی.

**عیب پټول** :- (۱) د چا عیب یا نقص پټول- د چا په نقص یا عیب پرده اچول- پرده پوشي کول. (۲) د کوم څیز د نقص د پټولو دپاره څه طریقه اختیارول- په څه طریقه د څه څیز عیب د نظر نه پناه کول.

**عیب پوش** :- (ـــپو+ش)- عیب پټونکی- په عیب پرده اچونکی- نقص نه ښکاره کوونکی.

**عیب پوشي** :- (ـــــ+پو+شي)-[اعف تر-اس-مو]- عیب یا نقص پټونه په عیب یا نقص پرده اچونه.

**عیب جو** :- (ـــــ+جو)-[اعف تر-اس-مذ-ج:ان]- عیب لټونکی- نقص لټونکی- په کوم کس، کار یا څیز کښې خرابي یا نقص یا د څه کمي لټون کونکی.

عیب جویو خلکو حمید هسې خولې خولې کړ
لکه وړې سپې چې کېباسي په ښکار خــولې (حمید بابا)

**عیب جوئي** :- (و ـــــــــ عیب جو)

چې عیب جوئي دې پاك کلیم شئ
څکــه دی د خدای غلیم شــئ (حافظ)

**عیب جوئي** :- (ـــــ+جُو+ئي)- عیب لټونه- د نقص لټون- د خرابی یا کمي لټون.

**عیب جوئي کول** :- (عیب لټول- د نقص یا د کمي لټون کول.

**عیب ښرگندول د چا** :-

**عیب ښکاره کول** :- (د چا نقص ښکاره کول- د چا بدي یا خرابي ښکاره کول.

**عیب ښرگندېدل** :-

**عیب ښکاره کېدل** :- (نقص ښکاره کېدل- خرابي ښرگندېدل- نقص په نظر کښې راتلل- عیب یا نقص وغیره هرچاته معلومېدل.

**عیب ژن** :- (ـــــ+ژ+نْ)- عیب واله- نقص واله- خراب.

**عیب گڼل** :- (نقص گڼل- خرابي یا کمی گڼل- بدکار گڼل.

**عیب گوی** :- (عیب ویونکی- بد ویونکی.

سیند د سپي په خولهٔ باندې نه خړ شي نه ناپاك
زار دې د عیب گویو چې د پاکو په کار بلـوسي (حافظ)

**عیب ناك** :- (وګورئ- عیب ژن.

**عیب واله** :- (ـــــوا+لَ)- هغه څیز وغیره چې څهٔ نقص لري- نقص واله ناقص- خرابي واله.

**عیب وئیل** :- (مص-تر)- بد وئیل- د چا نقصونه کمزوري بیانول.

د غائب مسلمان عیب وئیل غیبت دی
اخترا ده چـــي علت په بـــې علت ردي (حافظ)

**عیبي** :- (عَي+بِي)-[اعپ تر-صف]- عیب واله- نقص واله- ناقص- خرابي واله- عیب ژن.

**عیبي کېدل** :- (عیب ژن کېدل.

**عید** :- (عِي+دْ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]- اختر- د خوشحالي ورځ. (دا د عود نه جوړ شوی دی څکه چې د اختر ورځ په کال پس راګرځي).

زهٔ غم ژن په عید په جشن خبر نه شوم
کــه درست خلك د دهلیه ابتهاج کا (خوشحال)

**عیدگاه** :- (ـــــ+گا+هْ)-[اعپ تر-اس-ظرف]- هغه ځای (مېدان) چې د اختر د نمانځه دپاره مقرر شوی وي- د اختر د نمانځه ځای. (دا عموماً د ښار یا کلي نه بهر لوی ځای وي، چې د ښار یا کلي ټول خلك پکښې د اختر لمونځ کوي).

**عیدي** :- (عِي+دِي)-[ار-اس-مو]- (۱) د اختر د ورځې انعام چې ماشومانو له ورکړی کېږي- د اختر پیسې. (۲) د اختر مبارکي خاص خط چې ډیر ښکلی چاپ شوی وي- او د مکتوب الیه د مناسبت سره پکښې د اختر د مبارکي کلمات یا شعرونه لیکلي شوي وي- د اختر د مبارکي خط.

**عیسایي** :- (عِي+سا+يِي)-[اعبر-ف تر-اس-مذ-ج:ان]- هغه کس چې د حضرت عیسیٰ علیه السّلام منونکی وي- نصراني- مسیحي- کرسچین.

**عیسائیت** :- (عِي+سا+ئِ+يَ+تْ)-[اعف تر-اس-مذ]- عیسایي ((بودنه))- عیسایي توب.

**عیسایئه** :- (عِي+سا+ي+نْ+رَ)- دعیسایي تانیث دی. د حضرت عیسیٰ علیه السّلام منومنکې ښځه.

**عیسوي** :- (عِي+سَ+وِي)-[اعبرف-تر-صف]- حضرت عیسیٰؑ سره متعلق یا حضرت عیسیٰؑ ته منسوب. خصوصاً هغه تقویم (کېلنډر) کوم چې عیسایانو د حضرت عیسیٰؑ د پیدا‌وښت د ورځې نه شروع کېږي. نن

صبا هم دغه کېلنډر عام استعمالېږي. (خو په دې حساب کښې د دې تقويم ټاکونکي تېروتي دي او د دريو کالو فرق لري).

**عيسوئيت** :- (عي+سَ+وي+ىَ+تْ)-[او______ عيسائيت]

**عيسىٰ** :- (عي+سا)-[اعبر-اس-مع-مذ]- حضرت عيسىٰ عليه السلام د اصل نوم عربي شکل دے- اصل لفظ ((جي سس)) دے- جيم په ي بدلېږي- دې نه ((يي سس)) او بيا عيسىٰ ترې جوړ شه. د بني اسرائيلو (يهوديانو) اخري پېغمبر ؤ- چې خاص د هغوي دپاره راغلے ؤ. خو يهوديانو د هغهٔ د پېغمبرۍ او د هغه د کتاب نه انکار وکړ. او د هغه سخت دښمنان وګرځېدل- تر دا چې په خپلو کوښښونو ئې د روميانو (رومن) حاکمانو په ذريعه ئې (په خپل خيال) هغه صليب ته وخيژاوهٔ- او وئې واژهٔ.

کومو خلکو چې په هغهٔ ايمان راوړ- او عيسايان يا مسيحيان بللے شي هغوي ترينه د خدائے پاك زوے جوړ کړ- او دا عقيده لري چې په صليب باندې د ځان په وژلو، د ټولو عيسايانو د ګناهونو کفاره ئې ادا کړه.

مسلمانان حضرت عيسىٰ عليه السلام يو انسان او د خدائے پاك يو لوے پېغمبر مني- او د هغهٔ په کتاب (اصل انجيل) هم ايمان لري. حضرت عيسىٰ عليه السلام ډېر ناروغه او بيماران روغ کړي وو. او وائي چې ځينې مړي ئې هم ژوندي کړي وو. ځکه د مسلمانانو په شاعرۍ کښې د هغه د دې معجزو ذکر ډېر راځي او د خپلې معشوقې دپاره ئې استعمالوي.

له زمينه قدم کښېږده

په اسمان لکه عيسىٰ! (رحمان بابا)

**عېش** :- (عَي+شْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) ژوند په خوشحالۍ سره تېرونه. د ژوند ارام- خوشحالي- لطف- خوند.

پتنګانو لره ورکړ خدائے په اور کښې

هغه عېش چې بلبل ئې په ګلـــزار کا (رحمان بابا)

(۲) د مستۍ ژوند- نفس پرستي- رنډي بازي- ډم بازي- دولت په خرابو کارونو الوځول.

**عېش کول** :- (۱) د خوشحالۍ او ارام ژوند تېرول. (۲) تماش بيني کول- رنډي بازي. ډم بازي کول- شهوت پرستي کول- په خرابو کارونو دولت الوځول.

**عېش و عشرت** :- (___+(شو)ع+ش+رَ+تْ)-د ارام او د خوشحالۍ ژوند اسوده او مسرت ژوندن.

**عېش و عشرت کول** :- (خپل ژوند په عېش او په عشرت تېرول- خوشحاله او د مزو چرچو عمر تېرول.

**عېشونه کول** :- (مزې کول- خوشحاله ژوند تېرول- خوشحالي او شهوت پرستي کول.

**عېشي** :- (عَي+شي)-[اعپ تر-صف]- (۱) عېش کونکے- په ارام او خوشحالۍ ژوند تېرونکے. (۲) تماش بين- رنډي باز- شهوت پرست- په خرابو کارونو دولت الوځونکے.

**عېن** :- (عَي+نْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه-عيون]- (۱) سترګه.

واړه لـــواړ سرونه نغـــري د دردمنو

د مرزي تر خولې بتر دے د عشق عېن (خ)

(۲) چينه- د اوبو چينه. (۳) د هر څيز ذات- د هر څيز ځان يا نفس.

(۴) بالکل تيك- بېخي.

ظاهر نن له تا جدا يم عېن ماته برابر ئې (خوشحال)

(۵) د عربۍ (فارسۍ اردو وغېره ژبو) د يو توري غړ نوم ((عېن)) (ع).

(په عربۍ کښې د ((عېن)) ګڼې معنې دي. د لغت ځينو عالمانو خو اتهٔ څلوېښت معنې ئې ليکلي دي. بلکې ځينو د دې نه هم ورزياتې کړې دي- خو په پښتو کښې ئې دغه ټولې معنې نهٔ استعمالېږي)

**عېن په وخت** :- (___+پَ+وَ+خْ+تْ)-[اعپ تر-تف]- په تيك وخت- عېن په موقع.

**عېن اليقين** :- (___+(نُ+لْ+يَ+قي+نْ)-[ع-تر-اس-مذ]- د يقين يوه خاصه درجه ده، چې د څهٔ څيز ماهيت او کېفيت په خپلو سترګو د کتلو نه پس په يقين سره معلومونه. په خپلو سترګو ليدلو نه پس يقين راتلل. (د يقين نورې دوه درجې ((علم اليقين)) او ((حق اليقين)) دي.

**په عېن جنګ کښې** :- (بېخي د جنګ په دوران کښې- هغه وخت چې ښهٔ تود جنګ روان ؤ.

**په عېن ځوانۍ کښې** :- (بېخي د ځوانۍ په وخت کښې- تيك د ځوانۍ په دروان کښې.

**په عېن وخت کښې / په عېن زمان کښې** :- (په تيك وخت- ان په موقع- په صحيح وخت کښې.

**عېن جيم** :- د ((عاليقدر جلالتماب)) مخفف يعنې د الفاظو د سر توري دي. (ع-ج) چې په افغانستان کښې يو اعزازي لقب دے.

**عېن شين** :- (عي+نْ+شي+نْ)-[مخفف]- د ((عالي)) او ((شان)) د لفظونو د سر توري دي- يعنې د عالي شان مخفف دے- دا په افغانستان کښې يو اعزازي لقب دے.

**عېن صاد** :- (عَي+نْ+صْ+وا+دْ)-[مخفف]- د عالي قدر- صداقت مآب د الفاظو د سرتوري دي- د ديو د مخفف په طور په ليك کښې راځي. دا الفاظ د افغانستان په حکومت د ځينو لويو افسرانو او امراؤ لقب ؤ- په ليك کښې ((ع-ص)) ليکلے کېدهٔ.

**عېن عېن** :- (عَي+نْ+عَي+نْ)-[القب]- د ((عاليجاه)) عزت همراه د لفظونو د سرتوري- د مخفف په طور استعمالېږي. په افغانستان کښې د يو يو عهده دارانو يو لقب چې د عزت دپاره د هغوي نوم سره ليکلے کېږي. دا عموماً مخففاً (ع-ع) ليکلے کېږي.

**عېن عېن شين** :- (عَي+نْ+عَي+نْ+شي+نْ)- [القب]- په افغانستان کښې د نائب سالار القاب چې د هغه نوم سره ليکلے کېږي. دا عموماً مخففاً د ع-ع-ش په شکل کښې ليکلے کېږي.

**عېنک** :- (عَي+نَ+کْ)-[اعف تر-اس-مذ-ج:ونه]- د سترګو شيشې چشمې.

**عېنک لګول** :- (په سترګو باندې د نظر د کمزورتيا له کبله چشمې لګول.

**عېنهِ** :- (عَي+نِ+هي)-[ع-تف]- د (بعېنهِ) مخفف دے. يعنې هوبهو بېخي دغه شان.

**عېني** :- (عَي+ني)-[اعف تر-صف]- سترګو سره متعلق- سترګو ته منسوب. د سترګو لېدلے- چشم ديد.

**عېني حقيقت** :- (هغه حقيقت چې په سترګو لېدلے وي.

**عېني شاهد** :- (___+شا+ه+دْ)

**عېني ګواه** :- (___+ګَ+وا+ه)-[اعپ تر-اس]- هغه ګواه چا چې کوم کار يا معامله په خپلو سترګو ليدلي وي- چشم ديد ګواه.

**عېني** :- (عَي+ني)- باکل- هوبهو- صحيح- درست.

**عېني حقيقت** :- (___+حَ+قي+قَ+تْ)- بالکل حقيقت- بېخي رښتيا- عېن حقيقت.

**عېنيات** :- (عَي+نِي+يا+تْ)-[اعف تر-اس-ج]- د سترګو سره متعلق علم.

**عېنيت** :- (عَې+نې+یَ+تْ)-[عف تر-اس-مذ]- عېن سره متعلق- بالکل درستي- ښځي صحت.

**عيوب** :- (عُ+يُو+بْ)-[ع-اس-جم]- د (عېب) جمع ده.

**عيوب ښودل د چا** :- (د چا عېبونه ښکاره کول- د چا نقصونه يا بد څرګندول.

**خپل عېب د ولو مېنځ** :- (خپل عېبونه د ولو مېنځ وي- يعنې نۀ ښکاري- خپل عېبونه (بد) نۀ ليدل.

**عيوق** :- (عَ+يُو+ق)-[ع-اس-مذ]- د يو روښانه ستوري نوم- چې د پرئيونو نه وراندې راخيژي او بيا ترې وراندې ځي.

مضبوط مــزے د تمکين مــې ګسته شو
پېــونـــد نـــاخلي له عيوقه له کېوانه (حافظ)

**عيون** :- (عَ+يُو+نْ)-[ع-اس]- هغه کس چې نظر باز وي- د سترګو نظر ئې لګي او په نظر ئې بل سړي ته نقصان رسېږي- د نظره کونکے

**عيون** :- (عُ+يُو+نْ)-[ع-اس-ج]- د ((عېن)) جمع ده- (و ـــــ عېن)

**عېنېن** :- (عَې+نې+نْ)-[ع-اس]- د ((عېن)) تثنيه ده. دوه سترګې يا دوه چشمې يا چينې.

د زيبا جمال ئې ډېر دے زېب و زين
ولـــې زړونه د عالم وړي په عېنېن (خوشحال)

◈◈◈

# غ

**غ** :- (غِے+نْ)-[اس-مذ-ج ـــــ ونه] د پښتو د الفبا نهٔ ویشتم توری دی. (د عربۍ نوولسم، د فارسۍ دوه ویشتم او د اردو پینځویشتم حرف دی) د زیات وضاحت دپاره ورته معمیه یا منقطوطه (یعني نقطې واله) غین هم وائي. په هندۍ او سنسکرت وغیره پخوانۍ هندي ژبو کښې نشته. د دې ژبو په الفاظو کښې په "گ" بدلولې شي. دا اصلاً خاص د عربۍ توری گڼلې شي. خو په پښتو کښې ډېر داسې الفاظ دي، چې دا غږ لري. خو اصلاً د عربۍ نهٔ دي، ځکه دا د پښتو خپل غږ دی. دا د ژبې وروستنۍ پلنې برخې، نرمې اورۍ سره د لگولو په ذریعه پېدا کولې شي. اواز ئې کلك بندېز نهٔ لري. مخرج ئې د "خ" او "ق" ته ورته دی. دا توری ځینې وخت ق سره او ځینې وخت (خ) او (گ) سره هم بدلېږي.

**غاب** :- (غا+بْ)-[ع-اس-مذ-ج: غابونه]- (۱) د (غابه) جمع ده. ځنگلونه- ځنگلې- بڼونه- درگه. (۲) د قاب بدل شکل- لوی تالې تال. (۳) د زمري د استوگنې ځای.

**غابوڼی** :- (غا+بو+ڼَ+ی)-[ق-اس-مذ-ج: غابوڼي]- یو قسم بوټی دی د گندنا په شان تریخ دی او ابي شان گلونه کوي.

**غاپ** :- (غا+پْ)-[اس- سوت]- غپ- دسپي اواز- غپا.

**غاپل** :- (غا+پ+لْ)-[مص- مت]- (۱) د سپي اواز کول- غپ غپ کول- غپا کول- غپېدل- غپل. (۲) بکواس کول.

**غاپونکی** :- (غا+پُو+نْ+کِی)-[اس-فا-مذ-ج: غاپونکي]- (۱) غپ غپ کونکی- غپېدونکی- عوعو کونکی- عف عف کونکی. (۲) بکواس کونکی.

**غاپي** :- (غا+پِي)-[جمله]- (۱) غپ غپ کوي- غپا کوي. (۲) بکواس کوي- خوشې شور کوي- بې فایدې شور کوي. (عموماً خوشې غاپي- یا هسې غاپي وائي).

**غاتر** :- (غا+تُ+رْ)-[ع-اس-مذ-مؤ: غاتره]- قچر- خچر. (د قاتر یا قطر بدل شکل دی).

**غاټول** :- (غا+ټُو+لْ)-[اس-مذ-ج: غاټولونه]- خاټول- خټول- غټول- د لاله گل.

**غټوئی** :- (غا+ټو+ئی)-[مص-مت]- (۱) د سپي اواز کول- غپ غپ کول- غپا کول- غپېدل- غپل.

**غار** :- (غا+ر)-[ع-اس-مذ-ج: غارونه]- (۱) لویه ارته پلنه سوړه- خصوصاً هغه لوی ارت او دننه تنوتې ځای چې په غر کښې قدرتي طور سره جوړ شوی وي. گاره- سمڅه- سمڅ. سُمت (۲) د غار د شکل ځای- (که په غرهٔ کښې نه هم وي) لوی ډوغل. (۳) (تشبیها) لوی ژور زخم. (۴) (عو) کُنه- کُس (په کنځلو کښې استعمالېږي). (۵) د ځنگلي ځناورو د اوسېدو ځای چې په غرونو یا زمکه کښې د لوئې سوړې په شکل وي- غالی. (۲) عامې سوړې ته وائي.

که په خپله د خپل ځان په بدۍ نه ئې<br>
د مارونو په غـــــار مه وهه لاسونه (خوشحال)

**غارِ حرا** :- (ـــــ+حِ+را)-[اپ-تر]- د هغې سمڅې نوم دی چې د مکې معظمې ته نزدې په غرهٔ کښې دی. دغلته به حضور پاك صلعم د پېغمبرۍ نه اگاهو عبادت کولو. ځان سره به ئې خوراکه واخستله او څو څو ورځې شپې به هلته کښې وو.

**دغاریار** :- (د+ــــ+یا+رْ)-[اپ-تر]- (۱) د غار یا د سمڅې ملگری- حضرت ابوبکرؓ چې د هجرت په وخت په لویه خطره کښې حضور پاك صلعم سره په غار ثور کښې پټ ناست ؤ. (۲) مجازاً رښتینی دوست- هغه یار چې په سخته کښې د سړي ملگری وي- ډېر نزدې دوست.

**غار** :- (غا+رْ)[اس-مذ-ج: غارونه]- ډېر لوی کاڼی- لوی گټ. د غار خولې ته ئې غارونه واړول په اړمونو. (گل صنوبر)

**غار** :- (غا+رْ)-[ف-اس-مذ]- د یوې ونې نوم دی- چې خوشبویه وي- عموماً ورته شجرة الغار (د غارونه) وائي. او تخم ته ئې حب الغار وائي.

**غارمه** :- (غا+رُ+مَ)-[اس-جم]- (۱) نمر- لمر- نور (د سوري په مقابله کښې). (۲) د نمرتاؤ- سخت نمر.

عاقبت به مې غارمه د هجر وریت کا<br>
د اه چتـــــر به تر کومه په سر نیسم (علي خان)

**غارندونه** :- (غَا+رَ+نْ+دُو+نَ)-[اس-مو-ج: غارندونې]- د ځنگلي ثمڅرو یو لوی قسم.

**غاروزینه** :- (غا+رو+زِي+نَ)-[اس-مو-ج: غاروزینې]- غارندوی- د ثمڅرو یو قسم چې عموماً په دشتونو کښې موندی شي.

**غاری** :- (غا+رَی)-[اس-مذ]- (۱) ډېر زیات خوراك کونکی- خېټه ور- (۱) بد زبانه. (۳) په غار کښې استوگن- مجازاً ځنگلي.

**غاري** :- (غا+رِي)-[صف]- (۱) غار سره تعلق لرونکی- غار سمڅې ته منسوب. (۲) دغر (کوه) سره تعلق لرونکی- غرته منسوب.

**غارېدونی** :- (غا+رېِ+دُو+نَی)-[اس-مذ]- د ثمڅرو یو قسم- سمساره- غواروه- غاروی.

**غاریقون** :- (غا+رِي+قُو+نْ)-[ی-اس-مذ]- یو قسم سپك لرگی دی چې په داروگانو کښې استعمالېږي- دستونه راولي.

**غاړبندی** :- (غا+ړْ+بَ+نْ+دَی)-[اپ تر-صف]- هغه سړی چې غاړه ئې بنده وي. چې د مرۍ نه تړلې شوې وي یا ئې په خبرو پابندي لگېدلې وي. زبان بندی.

**غاړبوجن** :- (غا+ړ+بو+جَ+نْ)-[صف-مذ-مو: غاړبوجنه]- (۱) یو مرض دی. د غوږ شاته یا پښې د گوتو مېنځ زخمي شي او سوی کوي (خو وینې یا نو ترې نهٔ ځي) د دې مرض مریض ته غاړبوجن وائي (په فارسۍ کښې ورته

کاردك وائي. (۲) هغه سړے چې خاربنت پرې لګېدلے وي- د خاربنت د مرض مریض.

**غاړبوجن کېدل** :- (۱) د خاربنت مرض لګېدل. (۲) د غوړ شا د پښو د ګوتو مېنځ زخمي کېدل او سوے کول.

**غاړبوجنېدل** :- (غا+ړ+بو+جَ+نې+دُ+ل)-[مص]- غاړبوجن کېدل- (په فارسي کښې ورته کاردك شدن وائي) (و______ غاړبوجن)

**غاړپټي** :- (غا+ړ+پَ+ټَ+ی)-[اپ تر-اس مو]- هغه کپړه چې غاړه پرې پټوي- د غاړې رومال.

**غاړکۍ** :- (غا+ړَ+کَ+ی)-[اس-مع]- (۱) هغه کالے هار وغېره چې غاړه کښې اچولے شي. (۲) هغه ښکلې جوړه شوې پټه چې ښځې ئې د زينت د پاره په غاړه کښې تړي- ګلوبند- ګله بند. (۳) هغه ښکلې پټه چې د اس په مرۍ کښې اچولې شي- غړ ځونډے. (۴) د څرمنې وغېره هغه پټه چې کارتوسونه پکښې ټومبلي وي. او په غاړه کښې اچولې شي- ګردنۍ.

**غاړګۍ** :- (غا+ړَ+ګَ+ی)-[اس-مو]- په غاړه کښې د اچولو يو کالے. اوړۍ- غاړه کۍ- هار- بندۍ- د روپيو نه جوړ شوے امېل دے چې ښځې ئې په غاړه کښې اچوي.

**غاړو** :- (غا+ړُو)-[اپ تر-اس-مذ-ج: ګاړوګان]- هغه سړے چې غاړه (مرۍ) ئې اوږده وي- اوږدې غړانګې واله- غړانګو.

**غاړو** :- (د (غاړو_ اضافي او مجروري شکل.

**غاړوغړونو** :- (—+غ+رُو+نو)- د غاړې غړونه اضافي او مجروري وغېره مغيره شکل دے.

**په غاړو غاړو ژړل** :- (په زوره زوره ژړا کول- په چغو ژړل.

**په غاړو غړونو ګرزېدل** :-(۱) په غړونو او مېدانونو ګرځېدل- په غړونو او بيديا ګانو ګرځېدل- خوشې ګرځېدل- اواره ګرځېدل. (۲) په هر ځاے کښې ګرځېدل.

**غاړه** :- (غا+ړَ)-[اس-مو-ج: غاړې]- (۱) مرۍ- غړۍ- ګردن- دسر او تنې ترمېنځه برخه لکه (صراحي). (۲) جې- ژۍ- کناره- څنډه.

تهٔ د لښتې په غاړه کښېنه

زهٔ په د باغ منې لښتي کښې درلېږمه (ټپه)

(۳) حاشيه- د ټوپك شپېلۍ. (۴) اواز- خوش اوازي. (۵) د اولسي سندرو يو قسم چې دبلوچستان په کاکړو کښې ډېر عام دے. اصلاً دا د لنډ بحر شعرونه دي.

کاکړۍ غاړې لاښې دي

رنګا رنګ ټيپې په کښې دي (غاړه)

(۲) ځيني خلك ټپو مصرعو ته هم غاړه وائي- خو اصلاً د نمبر(۵) نوم دے. (۷) ګرېوان- د قميص هغه برخه چې مرۍ سره تړلې کېږي. (۸) زکام- يخ. (۹) طرف- لور. لکه: دې غاړه خلك ښهٔ نهٔ دي. (۱۰) ساحل. (۱۱) ټوکه- مسخره. (۱۲) افق- د اسمان غاړه. (۱۳) ذمه. (۱۴) کانه- لوبه.

**غاړه اخېستل** :- (۱) په زکام اخته کېدل. د زکام زياتېدل. (۲) ښوك تر غاړه کول- سينه کول.

**غاړه ادا کول** :- (مص-تر)- ذمه واري پوره کول- فرض ادا کول.

چې د ستا د عاشقۍ په تېغ شهيد شي

د رحمان غاړه به هاله شي ادا (رحمان بابا)

**غاړه ازادول** :- (و____ غاړه خلاصول)

**غاړه اېستل** :- (غاړه خلاصول.

**غاړه اېښودل- کښېښودل- اېښل** :- (مص تر)- (۱) ذمه واري قبلول- ذمه اخېستل. (۲) منل.

**غاړه باسل** :- (مص- تر)- تر غاړه کول- پخلا کول- د چا روغه جوړه کول.

**غاړه بسته** :- (—+بَ+س+تَ)-[اپ تر- صف]- (۱) هغه چې غاړه ئې تړلې وي. مجازاً خدمت ته ولاړ- تيار. (۲) پړے په غاړه. (ستا پړے او زما غاړه)

**غاړه بندول** :- (مص تر)- دروغ وئيل- ناحقه وېنا کول.

**غاړه بندې کېدل** :- (غاړه نيولې کېدل- د مواخذې ور ګرځېدل. لکه په پردي څيز به مو غاړې بندې شي.

**غاړه بوړه کېدل** :- (اواز کښېناستل- مرۍ کښېناستل- اواز د مرۍ نه صفا نه راوتل.

تهٔ به څو بې غمه خاندې خوشحالي کړې

زما غاړه په ژړا درپسې بوړه (خوشحال)

**غاړه پورې کول** :- (په خپل زکام کښې بل څوك ګرفتار کول. خپل زکام بل له ورکول لکه: غاړه دې را پورې کړه.

**غاړه پوره کېدل** :- (زکام کېدل- دبل نه زکام ورلګېدل. يخنۍ وهل.

**غاړه پېچل د څهٔ نه** :- (مخ اړول- انکار کول- نهٔ منل.

**غاړه تازه کول** :- (۱) د مرۍ نه خراشکے لرې کولو د پاره سپك شان ټوخے کول، چې خبرې په اسانه وکړې شي. (۲) ټوخے کول. (۳) مصنوعي ټوخي سره بل ته اشاره کول يا د خپلې موجودګۍ نه خبرول.

**غاړه خپه کول** :- (مرۍ خپه کول- مرۍ خپې کول- مرۍ له زور ورکول چې ساه ئې بنده شي.

**غاړه د ټوپک** :- (—+ دَ+ټُو+پَ+ك)- د ټوپك شپېلۍ.

تور ټوپك نرۍ ئې غاړې

زوره ور خاوندان غواړي (غاړه)

**غاړه غټې** :- (—+غَ+ټَ+ی)-[اپ تر- اس-مو]- (۱) غاړه په غاړه- سينه په سينه. هم غاړه- هم کنار. (۲) څنګ په څنګ- اوږه په اوږه- يو شان - لکه: شاعري او موسيقي يو تربله سره غاړه غټې ورغلي دي. (و-ق)

**غاړه غټې کول** :- (۱) تر غاړې باسل- تر غاړې کول- سينه په سينه کول- (لاس د يوبل نه چاپېره کول. (۲) صلح کول- د چا مېنځ کښې د صلح کولو نه پس تر غاړې باسل.

**غاړه غټې کېدل** :- (تر غاړه وتل- سينه په سينه جنګول او لاس د يوبل نه تاوول- هم غاړه کېدل- هم کنار کېدل.

**غاړه غټې ورتل** :- (سينه په سينه ورتلل- ځان سره جختول- تر غاړه باسلوله نژدې ورتلل. د کومې بلا نه چې نهٔ خلاصېږي غاړه غټې ورځه- متل.

**غاړه غجي** :- (—+ غَ+جي)- [و______ غاړه غټې]

**غاړه غچې** :- (—+غَ+چَ+ی)-[و_____ غاړه غړې]

**غاړه غړول** :- (مخ اړول- اعراض کول- خبره نهٔ منل- نافرماني کول.

**غاړه غړې** :- (—+غَ+ړَ+ی)-[و______ غاړه غټې]

**غاړه غړې پراتهٔ** :- (يوبل ته غاړه وتلي پراتهٔ- يوبل سره څنګ په څنګ پراتهٔ- سينه په سينه جنګېدلي پراتهٔ.

څوك مايوس څوك امېدوار د يار د وصل

څوك پراتهٔ غاړه غړې په پالنګونه (خوشحال)

**غاړه غړې شملاستل** :- (غاړه تر غاړې اودهٔ کېدل- همکناره شملاستل.

په دنيا تېرېده ډېر پکار نهٔ دي

څهٔ شملې له دې بوډۍ غاړه غړې (حميد)

**غاړه غړې کول** :- (و______ غاړه غتې کول).

**غاړه غړې کېدل** :- (و______ غاړه غتې کېدل).

زما خوار سره چې تل غاړه غړې وه
اوس نظر را باندې نۀ کاندي له عار (خوشحال)

**غاړه غړې ورتلل** :- (و______ غاړه غتې ورتلل)

**غاړه کښېښول** :- (راضي کېدل.

**غاړه کښېناستل** :- (اواز کښېناستل- د مرۍ د خرابۍ په وجه د مرۍ نه اواز نۀ راوتل- مرۍ کښېناستل.

**غاړه کول** :- (نازکول- فخر کول لکه: فلانکے په فلاني غاړه کوي.

**غاړه کول** :- (مص-تر)- ډډه کول- اړخ کول.

**غاړه کول- په چا** :- (شنده کول- لوبه کول- کانه کول.

بېلتانـــۀ را باندې هسې غـــاړې وکړې
چې مې نه وې په خاطر کښې هسې شونې (حسېن)

**غاړه لګول** :- (په فخر سره سر لوړول- سر خرو کول.

چې د قام په ننګ کښې و مړ هغه زويه
په عالم کښې د خپل پلار غاړه کا لکه (خوشحال)

**غاړه مې دې خداے نۀ نيسي** :- (خداے مې دې د سزا مستجب نه ګرځوي په دروغو مې دې خداے نه نيسي. (عموماً په داسې موقع وئيلے شي، چې څوك څۀ داسې خبره کوي، د کومې په حقله چې ئې پوخ يقين نۀ وي، خو په خپل خيال ئې يقين ته نژدې ګڼي).

**غاړه نښتل** :- (مص تر)- مرۍ نښتل- راګېرېدل- ذمه وار کېدل.

**غاړه نه وړل، چاسره** :- (ملګرتيا نۀ کول- طرفداري نۀ کول.

**غاړه نيول** :- (د سزا موجب ګرځول- ملزم ګرځول- په دروغو نېول. لکه: زما غاړه دې خداے نۀ نيسي خو.......

**غاړه نيولے کېدل** :- (د بې انصافۍ ملزم ګرځېدل. د نا انصافۍ کار د چانه کېدل- دروغژن ګرځېدل.

**غاړه وراچول** :- (۱) په شپيلۍ کښې کومه خاص سندره اړول. (۲) يو (ګران) کار ته لاس اچول- پېل پرې کول.

**غاړه وړل** :- (فرمانبرداري کول- حکم منل- غاړه اېښودل.

**غـاړه وړونکے** :- (— +وُ+ړُو+نْ+کَے)-[اس-فا-ج: کې]- عـاجزي کـونکے- فروتن- کمينه.

**غاړه هسکول** :- (و______ غاړه لګول)

**پورې غاړه** :- (پو+رې+—)-[اپ تر-اس-مؤ: ج: ړې]- د سيند- سړك وغېره نه په بل طرف.

**په غاړه** :- (۱) په ذمه. (۲) اغوستے. (۳) په څنډه- په کناره.

**پـــه لـــوړه غـــاړه** :- (پَ-لـو-ړُ+ړَ+—)- (۱) پـــه اوچـــت اواز- پـــه زوره. (۲) و____ هسکه غاړه)

**په هسکه غاړه** :- (پَ+هَ+سْ+کَ+—)-په فخر سره- په غـزت ابرو سره- په اوچتو سترګو.

**توره غاړه** :- (تو+رَ—)- [اپ تر-اس-مذ]- پخولے- شنه غاړه- د ماشومانو بيماري.

**د ګودر غاړه** :- (دَ+ګو+دُ+رْ+—)-[اس-مذ-ج—ړې]- د ګودر د بهاندو اوبو په خوا کښې وچه زمکه.

که دې زما ديدن ياد بړې
د ګودر غاړه اجاره واخله مئينه (ټپه)

**را پورې غاړه** :- (را+پو+رې—)-[اپ تر-اس-مؤ-ج: ړې]- د سيند سړك وغېره را په دې طرف- (يعني د متکلم طرف ته).

**ستا پړے او زما غاړه** :- (عموماً د خپلې صفايي د ښکاره کولو د پاره وئيلے شي. چې که زۀ مجرم ثابت شوم- نو تۀ پړے زما په غاړه کښې واچوه- او کومه سزا چې راکول غواړې زما به هېڅ عذر نۀ وي.

**وچه غاړه** :- (وَ+چ+—)-[اپ تر-اس-مؤ-ج: ړې]- وچه مرۍ.

**هسکه غاړه** :- (هَـ+س+کَ—)- غاړه اوچته نيولې- سر اوچت نيولے. په عزت سره- په فخر سره.

**په غاړه اخېستل** :-

**په غاړه اغېستل** :- (په ذمه اخېستل- د څۀ کار ذمه داري قبلول- ځان جواب ده کول.

**په غاړه اېښل – اېښودل، د چا** :- (په ذمه کول- (څوك د څۀ کار) ذمه دار ګرځول.

**په غاړه تلل** :- (په ژړۍ تلل- په څنډه تلل.

**په غاړه کښې ورلوئېدل** :- (تر غاړه وتل.

**پـه غـاړه کښې لوئېدل** :- (۱) غـاړې سره نښتـل- د څـۀ کـار د پـاره مجبـورول. (۲) پرځول کول- ځپرې لګول- جنګ جګړه کول.

**پـه غـاړه کښې پربوتـول – د چـا يـا چاتـه** :- (۱) پـه ذمـه کـېدل- د چـا ذمـه داري ګرځېدل. (۲) مجبورول.

**په غاړه کښې اوبۀ ښکاره کېدل** :- (مرۍ ئې دومره ښکلې او شفافه ده، چې اوبۀ څښکي نو هغه د بهر نه ښکاري. د معشوقې د صفت په طور شاعرانه بيـان دے.

**په غاړه غاړه** :- (پَ+—+غا+ړَ)-[اپ تر-تصف]- په ژړۍ ژړۍ- په څنډه څنډه- (د سړك- ولې يا د سيند وغېره).

**په غاړه کول** :- (اغوستل- په غاړه کښې اچول.

**په غاړه کول، د چا** :- (چاته سپارل- حواله کول- په حواله کول- د چا په ذمه کول.

**پـه غـاړه کېدل** :- (۱) په ذمـه کېدل. (۲) پـه حوالـه کېـدل- سپارلے کېدل. (۳) اغوستلے کېدل.

**تر غاړه اېستل – يستل – باسل** :- (غاړه تر غاړه کول- هم کنار کول. مجازاً د دوو کسانو ترمېنځه صلح صفايي کول.

**تـر غـاړه وتـل** :- (۱) غـاړه تـر غـاړې کېـدل- لاسونه د يو بـل نـه تـاؤول او سينې جنګول- معانقه کول- هم کنار کېدل. (۲) صلح کول- دښمنې مخالفت ختمول.

**او اوبښ په غاړه کول** :- (خبره زوړندول- معامله ځنډول- خبرې له ټال ور کول- اټالول- ملتوي کول.

**د تسليم غاړه اېښودل – کښېښودل – اېښل** :- (منل- تسليمول).

**کند په غاړه کول** :- (ځان نه فقير جوړول- درويشي اختيارول- فقير کېدل.

خدايــه کـــه زۀ تاته نژدې کېږم پـــه افلاس!
زر مې کند په غاړه کړه يو مات کچکول په لاس (خوشحال)

**مسئوليت ور په غاړه دے** :- (ذمه دار دے. ذمه داري ئې په سر ده.

**غاړه** :- (غا+ړَ)-[اس-مو-ج: غاړې]- (۱) غېږ- بغل- ترخ. (۲) دومره څيز چې په ترخ کښې په يو لاس نيولے کېدے شي- غېږ. لکه يو غاړه واښۀ.

**غـاړه غوټـه** :- (—+غُـ+ټَ)-[اپ تـر-اس-مـو-ج: غـاړې غـوټې]- بـوڅخکۍ او ګاټلې- هغه بوڅخکۍ وغېره چې په کښې پيسې ټکې پرتې وي. لکه: هلکو! خپلې غاړې غوټې سنبالې کړئ.

**غاړه** :- (غا+ړَ)-[اس-مو-ج: غاړې]- شذه- کانه- لوبه.

**غاړه کی:-** (غـا+ړَ+کَ+ی.) - ګربـوان پټـه چې مرۍ نـه چاپېره وي - کـالر. هغـه مرغۍ ته وائي چې د مرۍ نه ګېرچاپېره پټه وي.

**غـاړې** :- (غـا+ړې) -[اس-ج] - (۱) د (غـاړه) جمـع ده. (۲) د (غـاړه) اضـافي او مجروري وغېره شکل دے.

**غاړې اوږدې کول** :- (مرۍ اوږدول - دټوپکو پـه حقله ويلے شي - يعنې د ټوپکـو چلېدل شروع شو - د ټوپکو نه د ګوليو وتنه شروع شوه.

**غـاړې شـنې کـول** :- (۱) پـه اوچت اواز اوازونـه ورکـول. (۲) ډېـرې خبـرې (د نصيحت وغېره) کول. لکه: فلاني ته مې غاړې وچې کړې چې دا هسې مه کوه.

**غاړې غاړې** :- (ـــ+غـا+ړې) - (۱) مالامال پـه افراط سره. (۲) پوره ډک - تر غـاړو پورې ډک (سيند ، خوړ وغېره) تر څنډو - تر ژيو.(۳) رنګ رنګ - قسم قسم.

لکه رائې زما د زړۀ هغه لانـور دي

خلک څو خبرې کاندې غاړې غاړ (خوشحال)

**غاړې غاړې راتلل** :- (سيند يا خوړ پـوره ډک بهېدل - لوے سېلاب راتلل چې د سيند يا د خوړ وغېره اوبۀ تر (ژيو) پورې ډک شي.

**غـاړې غرونـه** :- (ـــ+غ+رَو+نَ) -[اپ تر-مذ-ج] - (۱) غرونـه او د غرونـو غـاړې - غرونه او مېدانونه. (۲) هره خوا. هر طرف.

ژاړې غـــاړې غـــرونه پـه احـــوال د عاشقانو

سېل د واورې نۀ دے چې را درومي له *کهساره* (*خوشحال*)

**غاړې غرونه کيج کول** :- (۱) پـه غرونـو او مېـدانونو ګرځېـدل - اواره ګرځېـدل. (۲) لېونے کېدل.

**غاړې غړول** :- (و______ غاړه غړول).

**غاړې کول په چا** :- (چا سره سلوك كول - بد سلوكي كول (چاسره).

**غاړې نيول** :- (مص تر) - مرۍ نيول - د مرۍ نـه نيـول - زور کـول - پـه زور څۀ کار کول په چا - داوښانو غاړې چا نيولي دي؟ (متل)

**غاړې وئيل** :- (سندرې وئيل (غاړه د سوبلې پښتونخواه د لور د اولسـي سـندرو يو قسم دے).

**تر غاړې باسل** :- (غاړه غټيې کول - هم کنار کول - سينه په سينه کـول - (او لاس د يو بل نه تاؤول) - بغلګير کول.

**تر غاړې غاړې راتلل** :- (تر څنډو پـورې ډک راتلـل - لکـه: اباسـين بيـا تـر غـاړې راغے يعنې تر ژيو پورې ډک راتلل - ډک سېلاب راتلل.

**خون د غاړې کېدل** :- (قاتل ګڼلے کېدل - د مړکېدو باعث ګرځېدل.

په بهار مه راځه خزانه

بورا به مړ شي خون به ستا د غاړې شينه (ټپه)

**د غاړې تعويذ** :- (ـــ+تا+ع+وي+ز) -[اپ تر-اس-مذ-ج: تعويذونـه] - هغـه د سرو يا د سپينو زرو نه جوړ شوے کالے چې په غاړه کښې ځوړندولے شي - ددې شکل وړوکي شان ډبلې په شان دي او عموماً پـه کښې څۀ تعويـذ بند کړے شوے وي.

**د غاړې تعويذ کېدل** :- (پـه چا پـورې نښـتل - د څۀ کار ايسـتلو دپاره چا پسـې کېدل.

**د غاړې کول د چا** :- (د چا په ذمه اچول - د چا په ذمه داري کښې ورکول.

**د غاړې کېدل د چا** :- (۱) د چا په غـاړه کېـدل - د چـا پـه ذمـه داري يـا سر پرستۍ کښې راتلل. (۲) د چا په پړه کښې شاملېدل.

**د غاړې لاسونه ختل** :- (د ګربـوان نـه لاسونه وښـکلے کېـدل - د چـا د مشـت و ګريوانۍ نه خلاصېدل.

ښېلتونه کور دې مولاوران که

چې دې زما د غاړې وخېژي لاسونه (ټپه)

**د غاړې وژے** :- (ـــ+ؤ+ژَے) -[اپ تر - اس-مذ-ج:وژې] - شاه رګ - د مرۍ رګ.

**د غـاړې هـار** :- (۱) د غـاړې امېل. (۲) هغـه څيـز يـا بنـي ادم چې بـل چـا پـورې ونښلي - او نۀ ترې جدا کېږي.

تومت زما د غاړې هار دے

زۀ به د غاړې هار تر مرګه ګرځومه (ټپه)

**له غاړې اړول** :- (له غاړې لرې کول - ذمه داري يا بوج د ځانه لرې کول

**جګ غاړے** :- (جَ+ګ+ـــ) - (و______ لك غاړے).

**سندر غاړے** :- (سَ+نْ+د+رْ+ـــ) -[اپ تر-اس-ج:سندرغاړي] - سندره ويـونکے - ښکلے اواز لرونکے - خوش اوازه - ډم يا ډمه بدلې مجلسي.

**شين غاړے** :- (شي+نْ+ـــ) -[اپ تر-اس-مذ-ج: شين غـاړي] - د يـوې مرغـۍ نوم دے. ربنګکے (ف-دينګګ)

**رنځـور غـاړے** :- (رَ+نْ+دْ+رُو+رْ+ـــ) - [اپ تـر-اس-مـذ-ج:ـــ ړي] - مـريض - کمزورے - مانده شوے.

**لک غاړے** :- (لَ+كْ+ـــ) -[اپ تر-ص] - هغه چې غاړه (مرۍ) ئې ښغـه وي. فخـر او وياړ سره سر اوچت لرونکے.

**هسک غاړے** :- (هَ+س+كْ+ـــ) - و______ لك غاړے.

**غاړيت** :- (غا+ړي+تْ) -[اس-مذ-ج:ـــ ونه] - دوکه - فريب - ټګي - تېر

**غـاز** :- (غـا+زْ) -[اس-مـذ] - (۱) وهـل شـوي مـالوچ - پنبـه - کريوسـکه. (۲) وهلـې شـوې زړه وړۍ. (۳) سـورے - شـګاف. (۴) يـوه پخـوانۍ وړه سکه - دمړے غاز.

**غاز** :- (غا+ز) -[ف-اس-مذ-ج:ـــ ونه] - ګـاز - ګېس. (د انګرېزۍ د ګېس بـدل شکل دے).

**غاز درلودونکے** :- (فپ تر - اس-مذ-ج:ـــ کي] - ګېس لرونکے.

**غاز سازي** :- (ـــ+سا+زي) -[ف تر-اس-مو] - ګېس جوړؤنه - ګېس تيارونه.

**غـاز** :- (غـا+زْ) -[اس-مـذ-ج:ـــ ونـه- مـو: غـازه- ج: غـازې] - د مرغـابو يـو قسم - غټه مرغابۍ.

**غازونه** :- (غا+زو+نَ) - د (غاز) جمع ده - ګېسونه.

**غازه** :- (غا+زَ) -[ف-اس-مو-ج: غازې] - (۱) هغه ګلابي پوډر چې ښځې ئې د ښکلا دپاره په مخ مږي. ګلګونه - سُرخي - سُرکۍ. (۲) لکه لمے - ډونګه.

**غازي** :- (غا+زي) -[ع-اس-مذ-ج: غازيان] - (۱) غـزا کـونکے - د خداے پـه لار کښې جنګ کـونکے - مجاهد. (۲) مړنے - مېړۀ - توريالے - بهـادر. (۳) يـو لقب چې د هغې سړي دپاره استعمالېږي چا چې د اسلام دپاره کفـارو سره جنګ کړے وي. (۴) فاتح - بريالے - سوبه مند.

**غازي** :- (غا+زي) -[صف] - غاز يعني ګېس سره تعلق لرونکے. ګېس والـه - ګېس ته منسوب.

**غازي ماسکه** :- (ـــ+ما+س+كَ) -[انګ تر-اس-مو-ج:ـــ ونـه] - د ګېسـونونه د بچ کېدو ماسك.

**غازيانه** :- (غا+زي+آ+نَ) -[عف تر-صف] - د غازي په شان - د مجاهد پـه رنګ - د توريالي جنګيالي په طور.

**غاژه** :- (غا+ژَ) -[ف-اس-مو] - و______ غازه.

**غاږ** :- (غا+ګ) -[اس-مذ] - غږ - اواز.

**غاږے** :- (غا+ګے-ژَے) - د (غږے) بدل شکل - اواز واله.

**بدغاړے** :- (بد اوازه- خراب اواز واله- غړانګو.

**غاسل** :- (غـا+س+لْ-[ع-اس-صف-مـذ-ج:ان-مـؤ:ه] - (۱) غسـل کـوونکے. (۲) غسل ورکوونکے- لنبوونکے.

پـه جامــوئې هوسېږي
مرده شوے او غـاسلان (رحمان بابا)

**غاسول** :- (غا+سُو+لْ-[اس-مـذ]- يـو قسـم بـوټے دے چـې (سـجر) تـرې حاصلېږي- زمې- بروځه. (ف- اشنان)

**غاښ** :- (غا+خ/ شْ-[اس-مذ-ج:ونه] - (۱) د خولې هغه واړهٔ واړهٔ هډوکي چې خوراك پرې مېده کولے شي. دندان. د اري هغه درې ګوټېزه تېرې ځوکې چې لرګے پرې کولے شي. دندانه- غاښے.

**غـاښ برېښــول** :- (۱) د تريـو څيـز پـه غـاښ کښـې بـرېښ پيـدا کـول. (۲) سزا ورکول.

**غاښ برېښېدل** :- (د مقابلې توان نهٔ لرل- د زوره ور مقابلې ته نهٔ وراندې کېدل (د سخت تريو څيز په خوراك کښې غاښونه کار نهٔ کوي. ددې نه برنې. محاوره جوړه شوه).

**غاښ پوه** :- (ـــ+پو+هـ-[اپ تر-اس-مذ-ج:ان]- د غاښونو د مرضونو يا عـلاج ماهر. د غاښونو ډاکټر يا حکيم.

**غاښ تودېدل** :- (د خوراك په څهٔ څيز د غاښ ګرمېدل عموماً د لړ څيـز پـه حقلـه د نفي په شکل کښې استعمالېږي.

**غاښ تېرول** :- (و______ غاښونه تېرول).

**غـاښ ټومبونے** :- (ـــ+ټُو+مْ+بُو+نَے-[اپ تر-اس-مـذ-ج:نې]- هغـه ډکے چې د غاښونو نه پرې ننبتے خوراك را اوباسي.

**غـاښ چيچـک** :- (ـــچِي+چَ+كْ-[اپ تر-صف-مـذ-مو:ه]- هغه څيز چې شګې پکښې ګډې وي، چې په خوراك کښې د غاښـونو لاندې راځي. شـګلن- ريګدار.

**غـاښ چيچـل** :- (مص تر)- (۱) غاښـونه يوبـل سره جنګول- دا د ډېرې غصې علامـه ده. ځکـه مجازاً ډېـر زيـات پـه قهرکېـدل- پـه تـاؤ کښـې کېـدل. (۲) صـبر تحمـل کـول- وارکـول. لکـه: څـو ورځـې غـاښ وچيچـه، کتـاب ورته پيدا کوم. (ر پ ق)

**غـاښ چـيچن** :- (ـــ+چـي+چ+نْ-[اپ تـر-صـف-مـذ-مـؤ:ه] - (۱) و--- غـاښ چيچك- شګلن. (۲) غضبناك- په قهر کښې- قهرژن.

**غـــاښ چيچنـــه** :- (ـــ+چـــي+چ+نَ-[احمـــص] - (۱) د غـــاښ چيچـــل. (۲) غصه- غضبناکي- قهر.

**غاښ چيچنه کول، چاته** :- (چاته غاښ چيچل- غصه کول- ډېر په قهر کېدل چاتـه- زورل.

**غاښ چيچے** :- (ـــ+چِي+چِے-[اپ تر-اس-مو]- غـاښ چيچنـه- غاښـونه يوبـل سره په قوت سره مږل چې اواز ترې وځي. مجازاً د قهر- غصې او غضب څرګندونه.

**غاښ چيچے کول چاته** :- (د ډېره قهره چاته غاښونه چيچل د غاښـونو پـه چيچلـو د خپلې غصې او قهر اظهار کول- ډېر قهرېدل (چاته).

**غاښ سپينول** :- (خاندل- په خندا کښې غاښونه ښکاره کول.

غاښ که دانا سپين که زړهٔ ئې خلاص نهٔ وي له درده
نهٔ خـــــاندي بې باکــه خندا خـــوي د لېونو دے (حافظ)

**غاښ سکوے** :- (ـــ+سْ+كُو+ئے-[اپ تر-اس-مذ-ج: ئي]- د غاښ چاؤډ.

**غاښ ښکوے** :- (ـــ+خُ/شُ+كْ+رَے-[اپ تر-اس-مذ-ج:رې]- د خوراك هغه څيز چې د خوراك نه پس د غاښـونو پـه مېـنځ کښـې ننبـتے پـاتې شـي- غـاښ سکوے.

**غاښ غـاښ** :- (هغـه ځوك چې سپي يا بـل داسې ځناور ډېر خوړلے- داړلے- چيچلے وي- يعنې زخمونه ئې ډېر زيات وي.

**غاښ غاښ کښې وړل** :- (ځوك ډېر زخمي کـول- غوښـې غوښـې کـول- دا اکثـر مخاطب ته د ډېرې غصې او د قهر پـه حالت کښې وئيلے شي. يعنې دا چې غاښ غاښ کښې به دې يوسم. دا اکثر داسې حالت کښې هم وئيلے شي- چې يـو حملـه اور خپـل ښکار يـا مقابـل پـه وړومبـې وار کښـې ختم کړي او ډېر خراب ئې کړي.

**غاښ غاښ کـول** :- (د سپي يـا بـل داسې ځنـاور ځوك پـه داسې رنګ داړل- خوړل- چيچل چې ډېر ئې زخمي کړي.

**غاښ غاښ کېدل** :- (ځوك د سپي يا بـل داسې ځناور لـه لاسه خوړلے- داړلے- چيچلے کېدل.

**غاښ کتل** :- (عمر معلومول- د عمر اندازه لګول- (د ځناور عمـر د غاښـونو پـه شمېر معلومولے شي) چې په غوجل دې لـوے شي، غـاښ ئې مـه ګوره. (متل)

**غـاښ کښـل-اباسـل-وېسـتل** :- (مـص تـر)- رنځـور غـاښ (پـه دنـدان سـاز) راوباسل.

**غاښ کنډاس** :- (ـــ+كَ+نْ+ډا+سْ- غاښ کنډاو شـوے- چې غـاښ يـا غاښـونه ووځي او د هغوي ځاے خالي پاتې شي.

وښتنه سپين سترګې تاريکې غاښ کنډاس
نهٔ وکــــاږي د دنيا لـــــه چـــــارو لاس (رحمان بابا)

**غاښ کنډاس کېدل** :- (غاښ يا غاښونه وتـل- او د پريوتـو غاښـونو ځـاے خـالي کېدل- مجازاً ډېر بوډا کېدل.

**غاښ کول** :- (۱) غاښ پيدا کـول- د ماشوم پـه اول سر کښـې غـاښ پېدا کـول. (۲) د چيچلو جوګه ګرځېدل- طاقت پېدا کول.

**غاښ کېدل** :- (۱) غـاښ پيـدا کېـدل- د ماشـوم پـه اول ځـل غـاښ راتوکېـدل. (۲) د چيچلو جرګه ګرځېدل- طاقت پېدا کېدل.

**غاښ لګول** :- (مص تر)- په خولهٔ کښې د پريوتي غاښ (يا غاښونو) په ځـاے بـل مصنوعي غاښ (يا غاښونه) لګول- غاښ اېښودل يا کښېښودل.

**غاښ ماتول د چا** :- (مجازاً چاله ماتې ورکول- ځوك وهل- ډبول.

**غاښ ماتے سر ماتے** :- (جنګ جګړه چې پـه کښـې يوبـل زخمي او سخت خوږ کړي.

**غاښ مښونے** :- (ـــ+مَ+خُو/ شو+نَے-[اپ-تر اس-مذ-ج:نې]- د غـاښـونو د مږلـو اله- برش- مسواك.

**غاښ نهٔ تودېدل** :- (غـاښ د خوراك پـه څيـز نـه ګرمېـدل- مجازاً د ډېـر لـړ څهٔ خوراك په حقله وئيلے شي. لکه: په دې حلوا خو زما غاښ هم نهٔ تودېږي- (يعنې ډېره لږه ده).

**غاښ وتلے** :- (پ تر-صف)- هغه چې غاښ ئې پريوتے وي. مجازاً بوډا.

غـــاښ وتلے ږيره سپينه لاتر اوسه
باز په لاس ګرځم په غرونو په جبال (خوشحال)

**غـاښ ولـه** :- (ـــ+ؤ+لَ-[اپ تر-اس-مو-ج:لې]- د ولـو د ونـې يـو قسـم- ببـد مجنون- زېږه وله- خړانګو.

**غاښ ولی** :- (ـــ+و+لَ+ی)-[اپ-تر-اس-مو]- د غاښ ريښه.

**ګوته په غاښ کېدل** :- (حېرانېدل- د حېرانتيا له کبله خپله ګوته په خپلو غاښونو کښې نيول- ډېر زيات تعجب کول.

**ګوتې په غاښ نيول – کښېښودل** :- (د حېرانتيا له کبله ګوتې په غاښونو کښې نيول- ډېر حېرانېدل.

**غاښک** :- (غا+ښ+کْ)-[اس-صف-مذ-مو:ه]- غاښونو واله- غاښور- دندانه دار.

**غاښو** :- (غا+ښُو)-[صف]- غاښور- غاښونو واله- دندانه دار.

**غاښور** :- (غا+ښَ+وُ+ر)-[اس-مذ]- (۱) غاښونو واله- (۲) د زميندارو يوه اله ده چې د هغې په مدد زمکې او پټې هواروي او د يو ځاے نه بل ځاے ته د غواياڼو په ذريعه خاوره وړي.

**غاښور کېدل** :- (په غاښور سره پټې هوارول يا پکښې دکر دپاره پولې جوړول.

**غاښونه** :- (د غاښ جمع)

**غاښونه اېستل دچا** :- (د چا ډېره وهنه- دچا ډېره بې عزتي کونه- څوك ډېر کمزورے او بې وسه کول.

**غاښونه تېرول** :- (۱) مجازاً د مقابلې تياري کول- مقابلې ته ځان برابرول- (۲) (مذاقاً) غاښونه برش کول- غاښونه په برش صفا کول.

**غاښونه چيچل** :- (و________ غاښ چيچل)

په خولۀ دې هيڅ راته ونۀ وې

د سور پېزوان لاندې دې ووچيچل غاښونه (ټپه)

**غاښونه چيچل چاته** :- (چاته ډېر زيات په قهرېدل.

**غاښونه سپينول** :- (۱) مجازاً- خاندل- په خندا کښې غاښونه ښکاره کول- مسکېدل- مسا کول.

**غاښونه شمېرل** :- (۱) د څاروي عمر معلومول. (۲) ډېر سخت وهل- ډېر سخته سزا ورکول.

**غاښونه ښکاره کول** :- (خاندل- مسکېدل- مسېدل)

**غاښونه کرپول** :- (د غاښونو په جنګولو سره اواز پيدا کول.

**غاښونه کول** :- (۱) د ماشوم په اول ځل غاښ پيدا کېدل- (۲) زور او طاقت حاصلول.

**تر غاښونو لاندې کول** :- (په غاښونو کښې راوستل- مجازاً په قابو کښې راوستل- په قبضه کښې راوستل.

**غاښى** :- (غا+ښَ+ى)-[اس-مو]- دزميدارنو يوه اله- چې لوے لاسکے- لاستے لري او په سر کښې (عموماً) د لرګي اوږدۀ تېرۀ غاښي پکښې لګېدلي وي- په دې باندې د درمن غله او بوس الوزوي او بوس او غنم خپله جدا کوي. ((درې غاښي)) هم ورته وائي. ښاخې- خاښى- شاخې- سکو. بوګر

**غاښے** :- (غا+ښَے)-[اس-مذ-ج:ښي]- (۱) په غره کښې د غاښ په شان وتې ځوکه. (۲) کوتل- پچومے- د غرۀ نه د ور اوړېدلو لار.

مکـــره نادانه، د نۀ کړو کـــار دے

دا چې پرې خېژې غاښے دشوار دے (خوشحال)

**غاښيز** :- (غا+شي/خي+زْ)-[اپ تر-صف-مذ-مو:ه]- غاښونو واله- دندانه دار.

**غاصب** :- (غا+ص+بْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو):ه]- دبل حق په زور سره شوکونکے- يا تر لاسه کونکے- بيوره کونکے.

**غافل** :- (غا+ف+لْ)-[مص]- غاپل.

هومره خولې لګـوي غافي

تر هغه چې څۀ په خولۀ کړي (حميد بابا)

**غافل** :- (غا+ف+لْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو):ه]- غفلت کونکے- بې پروا- بې خبره- ناخبره.

عارفان همېش د خداے په ياد مشغول وي

د غافـــل تـــوره د زړۀ تختـه همــــه ده (خواجه محمد)

**غافل پاتې کېدل** :- (په غفلت کښې پاتې کېدل- ناخبره پاتې کېدل.

**غافلول** :- (غا+ف+لَ+وُ+لْ)-[مص]- غافل کول- بې خبره کول- توجه بل خواته اړول- بې پامه کول.

**غافلېدل** :- (غا+ف+لَې+د+لْ)-[مص]- غافل کېدل- بې پروا کېدل- بې خبره کېدل- توجه نه ورکول- پام بل خوا ګرځېدل.

**غاکل** :- (غا+کُ+لْ)-[مص]- غکل- د بزې اواز کول- بغارې کول.

**غال** :- (غا+لْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- ۱) ټګي برګي- چل ول- خصوصاً هغه ټګي کـــوم چـــې پـــه لوبـــه يـــا جـــوارۍ وغېـــره کښـــې کـــولے شـــي. (۲) جګړه- (کاکړ)

**غال کول** :- (ټګي کول- په لوبه يا جوارۍ کښې ملګروله دهوکه ورکول.

تا چـــې غال کاوۀ د لوبې مطلبي وې

په چوګان دې ګوتې وېستلو له مېدانه (جناب)

**غال وبول** :- (ـــــ+(لو)+بُو+لْ)-[و_____ غالبول]

**غال وغول** :- (ـــــ+(لو)+غُو+لْ)-[اس-مذ]- شور زوږ- شور شار- هله ګوله- شورغوغا. غول وغال هم وائي.

سر رشته د چـــارې هيڅ معــــلومه نۀ ده

خو دا هسې غول وغال دې په دا مېنځ کښې (خوشحال)

**غال مغال** :- (غا+لْ+مَ+غا+ل)-(و____غالبول)

**غال مغال کول** :- (شور شار کول- شور زوږ جوړول- هله ګُوله جوړول.

**غالب** :- (غا+ل+بْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- غلبه موندونکے- زبردست- زورور- برے موندونکے- فتح موندونکے.

**غالب بودل** :- (زور ور بودل- په زور کښې (بودل).

په تربې باندې تل وي د اوبو مينه غالبه (خوشحال)

**غالب کول** :- (برے ورکول- کامیابول.

**غالب کېدل** :- (غلبه موندل- برے موندل- مېدان وړل- زور ورکېدل- وړکېدل.

**غالب ګومان** :- (ــــ+ګُو+ما+نْ)-[عپ تر-اس-مذ]- هغه ګومان چې د حقيقت پکښې غلبه وي- ربښتياؤ ته نژدې ګومان.

**غالباً** :- (غا+ل+بَ+نْ)-[ع-تف]- د داسې شك په موقع وئيلے شي چې دغه شك يا ګومان حقيقت ته ډېر ورته وي. يقين ته ډېر نژدې کار يا خبره.

**غالبوزک** :- (غا+لْ+بُو+زَ+کَ)-[اس-مذ-ج:ونه]- دګل خطي يو غرئيز قسم دے- چې سرۀ او سپين ګلونه کوي- خيروګل- خيرو کوکۍ.

**غالبوزه** :- (غا+لْ+بو+زَ)-[اس-مو-ج:زې]- مچۍ- زنبور.

**غالبوزے** :- (غا+لْ+بو+زے)-[اس-مذ]- دګنډلو قسم دے- چې دوه جدا جدا ټوکي يوځاے کوي- او ګنډئ لکه ځنځې په شان وي- مچۍ- کنډه.

**غالبوزے کول** :- (د غالبوزے په اندازه دوه ټوکي يوځاے ګنډل- مچي کنډه کول.

**غالبوزې** :- (غا+لْ+بو+زې)-(۱) د (غالبوزه) جمع ده. (۲) د (غالبوزه) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل.

**غالبول** :- (غا+لْ+بُو+لْ)-[اس-مذ]- شورشار- شور زوږ- هله ګُوله.

**غالبه** :- (غا+ل+بَ)-[ع-اس-مو]- د غالب تانيث دے.

**غالبه ده** :- (ــــدَ)-[جمله]- غالب ګومان دا دے چې يقين ته نژدې خبره داده چې

-------

**غالبيت** :- (غا+لِ+بي+يَ+تْ)-[ع-صف]- غلبه- غلبه موندنه- غلبه کېدنه- فتح- سوبه- برے.

**غالبول** :- (غا+لِ+بَ+و+لْ)-[مص]- غالب کول- زورورکول.

**غالبېدل** :- (غا+لِ+بې+د+ل)- بريالے کېدل- برے موندل- کامیابه کېدل.

**غالوشه** :- (غا+لْ+و+شه)-[اق-اس-مو-ج:ې]- د غوا د پيو لوشلو ورکوټے لوښے.

**غالي** :- (غا+لَ+ی)-[اس-مذ]- قالين- غالينه.

**غالي ګے** :- (ــــ+ګَ+ی)-[اس-مو]- وړوکے قالين- قالين چه- غاليچه.

**غالي واله** :- (اس-مذ)- قالين فروش- قالين خرڅونکے.

**هراتي غالي** :- (هِ+را+تَ+تي+ــــ)-[د هرات په ښهر کښې جوړ شوے قالين- اعلى او غوره قالين.

**سره غالي هواروَل چاته** :- (د چا د عزت دپاره سور رنګے قالين ورته غوړول.

**غالے** :- (غا+لے)-[اس-مذ-ج:لي]- دوکه- ټګي- فريب- دروغ. (غالي هم وائي).

**غالے کول** :- (دوکه کول- فريب ورکول- دروغ کول- ټګي کول- (په لوبه جوارۍ وغيره کښې).

**غالے** :- (غا+لے)-[اس-مذ]- ور- غولے- انګړ- ميدان- د لاحقې په توګه د ځينو کلمو په اخره کښې راځي.

**اورغالے** :- (او+رْ+ــــ)-[اس-مذ-ج:لي] (۱) اتش دان- انګيټھی- يرغولے- (۲) نغرے.

**پنډغالے** :- (پ+نْ+ډ+ــــ)-[اپ تر-اس-مذ-ج:لي]- هغه ځاے چرته چې ګډې بزې جمع کولې شي.

**خناړغالے** :- (خَ+نا+ړ+ــــ)-[اپ تر-اس-مذ-ج:لي]- درګه- د زمري او د داسې قسم ځناورو د اوسېدلو ځاے.

**کمرغالے** :- (کَ+مَ+رْ+ــــ)-[اپ تر-اس-مذ-ج:لي]- کنده- غار- سورے- سمڅه.

**کوغالے** :- (کَ+و+ــــ)-[اپ تر-اس-مذ-ج:لي]- هغه وړه شان کنده چې د غټو ستو وريژو په مېنځ کښې جوړولے شي. او غوړي يا ماستهٔ پکښې اچولے شي. د خوراك په وخت کښې په رکيبي. يا تالي کښې خپل طرف ته کنده کول- په عمومي توګه هم د هر قسمه کندې دپاره استعمالېږي.

**ورغالے** :- (وَ+رْ+ــــ)-[اپ تر-اس-مذ-ج:لي]- و____ کوغالے.

**يرغالے** :- (يَ+رْ+ــــ)-[و____ اورغالے]

**غالي** :- (غا+لي)-[و____ غالے]

**غالي ژن** :- (ــــ+ژ+نْ)-هغه کس چې په جوارۍ کښې د بيللو په وخت اړي اچوي- کوي يا ټکي راواخلي- ټګي کونکے- ټګ ژن- دوکه باز.

**غالي** :- (غا+لي)-[ع-صف]- (۱) ډېر زيات- افزون. (۲) ګران- قيمتي. (۳) دحد نه اوړېدونکے- غلوکونکے. (۴) د شيعه ګانو يوه فرقه چې حضرت عليؓ د خداے په ځاے مني.

**غاليچه** :- (غا+لي+چَ)-[ف-اس-مو-ج:چې]- (۱) قالين- وړوکے قالين. (۲) په فرش د غوړولو د وړې نه جوړ ګلدار فرش. (۳) وړوکے سپنسين قالين.

**غاليه** :- (غا+لي+يَ)-[ع-اس-مو-ج:ئې]- يو قسم مرکبه خوشبو- چې پکښې عنبر- مُشك- کافور وغيره ګډ کړے شوي وي (وائي چې دا نوم پرې حضرت معاويهؓ ايښے ؤ).

**غامبورے** :- (غا+مْ+بُو+رَے)-[اس-مذ-ج:ري]- (۱) کومه- (د ونسو منسو نه جوړه شوې) جونګړه- کوډله. (۲) اننګے- بارخو.

**غامض** :- (غا+مِ+ضْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- (۱) پټ- ګران- دقيق- چې په اسانه په پوهه کښې نۀ راځي- پيچلې خبره. (۲) ګران کار.

**غانټول** :- (غا+نْ+ټو+لْ)-[و______ غاټول]

**غانج** :- (غا+نْ+جْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- قُتې- وړوکے شان ډوغل- چې هلکان پکښې غوزان ورغورځوي- غوچاڼے- کواڼې.

**غاندل** :- (غا+نْ+د+لْ)-[مص]- غندل- بد وئيل- مذمت کول- غندنه کول.

**غاندنه** :- (غا+نْ+د+نَ)-[اس-مو]- و_______ غندنه.

**غاندنه کول** :- (مص-تر)- غندنه کول- بد وئيل- مذمت کول.

**غاندنه کېدل** :- (مص-تر)- غندنه کېدل- بد وئيلے کېدل. مذمت کېدل

**غاندونه** :- (غا+نْ+دَ+و+نَ)-[حمص]- بد وئينه- مذمت- غندنه.

**غاندونکے** :- (غا+نْ+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- بدويونکے- غندنه کونکے- مذمت کونکے.

**غانده** :- (غا+نْ+دَ)-[اس-مو-ج:دې]- ناپسنده- مذموم- مذمومه. د حقارت يا د سپکوالي خبره.

څوك دې نۀ ګڼي په عشق کښې ما خفيف
په خير ن نمري غانده نۀ شي شريف

**غانډو** :- (غا+نْ+ډُو)-[اس-مذ-ج:ګان]- (۱) بې همته- بې ننګه- بې غيرته سړے. (۲) هغه سړے چې په ځلور بولې ځي. (۳) مجازاً کوني- ګانډو.

**غاو** :- (غا+و)- فرياد- شور.

مجنون غاو په عشق کښې وکړو زۀ خاموش يم
که انصاف وي تر مجنون مې لاتېرے دے (خوشحال)

**غاؤ** :- (غا+ؤ)-[اس-مذ]- شور- زوږ- فرياد.

**غاؤ پورته کول** :- (شور زوږ پورته کول- فرياد کول.

**غاؤ پورته کېدل** :- (شور زوږ ګډېدل- د فرياد شور پورته کېدل.

**غاؤچي** :- (ــــ+چي)-[اپ-تر-اس-مذ-ج:ان]- حاجب- دروانچي- دربان. (هغه کس چې د خلکو فرياد دننه حاکم يا بادشاه ته رسوي).

**غاؤرسي** :- (ــــ+رَ+سي)-[اپف-تر-اس-مو]- (۱) په فرياد رسېدنه- فرياد رسي. (۲) فرياد کونه- انصاف غوښتنه.

**غاؤرسے** :- (ــــ+رَ+سے)-[اپف-تر-اس-مذ-ج:سي]- (۱) په فرياد رسېدونکے- فرياد اورېدونکے- انصاف پرور. (۲) فريادي- انصاف غوښتونکے.

**غاؤغج** :- (ــــ+غَ+چْ)-[اپ تر-اس-مذ]- شورغوغا- حمله او بدل اخستنه.

که هرڅو لکه زاهد ګوښه نشين يم
نۀ خلاصېږم د رقيب له غاوه غچه (شمس الدين)

**غاؤ کول** :- (مص تر)-(۱) شورکول- فرياد کول.

مجنون غاؤ په عشق کښې وکړ زۀ خاموش يم
که انصاف وي په مجنون مې لاتېرے دے
(خوشحال)

(۲) نيائے غوښتل- انصاف غوښتل.

**غاؤ کول په چا** :- (۱) په شور زوږ سره په چا ورتلل- شور زوږ سره حمله کول- د بدو اواز پورته کول.

درست عالم رابانديّ غاؤ کا زۀ حېران يم
چې له زړۀ به په څو لړې کړم ستا مينه (خوشحال)

(۳) (چاسره) جګړه کول- شور کول- لکه: تاسو د فلاني سره ولې غاؤ کوئ؟

**غاؤناك** :- (ــــ+نا+كْ)-[اصف-مذ-مو:ه]- غاؤ واله- شور کوونکے- شوري- شوره پخت.

**غاور** :- (غا+و+رْ)-[اصف-مذ-مو:ه]- مغروره- متکبر- کبرژن.

**غاور** :- (غا+ؤ+رْ)-[اصف-مذ-ج:ه]- غالب- زورور- قهار.

**غاورول** :- (غا+ؤ+رَ+ؤ+لْ)-[امص]- غلبه موندل- غالبه کېدل- برے ورکول.

**غاوره** :- (غا+و+رَ)- په پښتو کښې د غاور (مذکر) په معنٰی کښې هم راځي- متکبر- کبرجن- مغروره.

**غاوره کېدل** :- (تکبر کول- کبرکول- لويي کول- (خصوصاً په خپل ځينې خصوصيت يا د کاميابۍ په وجه په چا کښې لويي يا فخر پيدا کېدل)

**غاوغړو** :- (غا+ؤ+غ+ړو)-[اس-مذ]- (۱) الغاؤ تلغاؤ- اړے ګړے. (۲) فطرت- هغه زمانه کومه چې د دوو پيغمبرانو ترمېنځه وي.

**غاوول** :- (غا+وَ+ؤ+لْ)-[امص]- په غاؤ کول- په فرياد کول- چاته ازار رسول- ظلم کول په چا.

**غاوَونه** :- (غا+وَ+ؤ+نَ)-[احمص]- په فرياد کونه- ظلم کونه- دُک رسونه

**غاؤونکے** :- (غا+وَ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- په شور فرياد راستونکے- په فرياد کوونکے- ظلم کوونکے- ازار رسوونکے.

**غاوَۍ** :- (غا+وَ+ۍ)- د ((غاوے)) تانيث دے.

**غاوے** :- (غا+وَے)-[اس-مذ-ج:ي]- غاؤ کوونکے- شور کوونکے- فرياد کوونکے- فريادي- انصاف غوښتونکے- مظلوم.

**غاوېدل** :- (غا+وې+د+لْ)-[امص]- (۱) په فرياد کېدل- فرياد کول. (۲) دک رسېدل- ازار رسېدل- دک تکليف زغمل.

**غاوېدنه** :- (غا+وې+دَ+نَ)-[احمص]- په شور فرياد ګډېدنه- شور فرياد کونه- ازار دُک ور رسېدنه.

**غاوېدونکے** :- (غا+وې+دُو+نْ+کَے)-[اس-ما-مذ-ج:کي]- شور فرياد کوونکے- مظلوم.

**غائب** :- (عا+ئِ+بْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- (۱) هغه چې موجود نۀ وي- غېر حاضر- الوتيا- الاستے. (۲) پټ- چې نۀ ښکاري- پوشيده- مخفي (په پښتو کښې ئې عموماً تلفظ ((غېب)) کولے شي.

**غائب دان** :- (ـــ+دا+ن)-[عف تر-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو):ه]- د غېبو علم لرونکے.

**غائب داني** :- (ـــ+دا+ني)-[عف تر-اس-مو]- د غېبو علم.

**غائب کول** :- (۱) غېب کول- پناه کول- پټول- پوشيده کول. (۲) پټول- غلا کول- په غلا وړل.

**غائب کېدل** :- (۱) د نظره پناه کېدل- غېب کېدل- پټېدل- پوشيده کېدل. (۲) ورکېدل.

**غائب ګو** :- (ـــ+ګو)-[عف تر-اس-مذ-ج:يان-(مو):ه]- د غېب خبرې کوونکے- د غېب حالات ښودونکے- ترويتي.

**غائب ګوئي** :- (ـــ+ګو+ئي)-[عف تر-اس-مو]- د غېبو خبرې کول- د غېبو حالات ښودل- ترويتي توب.

**غائب والے** :- (ـــوا+لے)-[عپ-تر-اس-مذ]- غېر موجودګي- د غېب حالت- غېر حاضري.

**غائبانه** :- (غا+ئِ+با+نَ)-[عف تر-تف]- د غېب په حالت کښې- په غېر حاضرۍ کښې- په عدم موجودګۍ کښې. الونيا- پشي شا.

**غائبانه پيژندګلو** :- (ـــ+پې+ژَ+نْ+د+ګَ+لو)-[اس-مو]- پشي شا پېژند ګلو- هغه واقفيت چې بغېر د چا د ليدلو، په تشو اورېدلو پيدا شوے وي- غائبانه تعارف.

**غائبانه جنازه** :- (ـــ+جَ+نا+زَ)-[عپ تر-اس-مو-ج:زې]- د جنازې هغه نمونځ چې مړے په موقع موجود نۀ وي. (چرته لرې مړ شوے وي).

**غائبانه عقيدت** :- (ـــ+عَ+قي+دَ+تْ)- هغه عقيدت کومه چې د چا سره د ليدلو بغېر (په تشو اورېدلو) په زړۀ کښې پيدا شوے وي.

**غائبول** :- (غا+ئِ+بَ+و+لْ)- يو شے غېر موجود کول- پناه کول- ورکول.

**غائبونه** :- (غا+ئِ+بَ+ؤ+نَ)-[احمص]- د يو شي غېر موجود کونه- پناه کونه- ورکونه.

**غائبوونکے** :- (غا+ئِ+بَ+وُو+نْ+کَے)-[اس ف-مذ]- هغه سړے يا فاعل چې څۀ شے غائبوي.

**غائبېدل** :- (غا+ئِ+بې+د+لْ)-[امص]- د څۀ څيز غېر موجود کېدل. پناه کېدل- ورکېدل.

**غائبېدونکے** :- (غا+ئِ+بې+دُو+نْ+کَے)-[اس-مف-مذ]- هغه شے يا څيز چې غېر موجود کېږي يا کېدے شي- پناه کېږي يا پناه کېدے شي- ورکېږي يا ورکېدے شي.

**غائبېدنه** :- (غا+ئِ+بې+د+نَ)-[احمص]- د يو څيز غېر موجود کېدنه پناه کېدنه- ورکېدنه.

**غائي** :- (غا+ئي)-[و___ غايوي]

**غائې** :- (غا+ئې)- (۱) د ((غايه)) جمع ده. (۲) د ((غايه)) اضافي او مجروري وغېره (وغېره) شکل.

**غايط** :- (غا+ئِ+طْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) د بولو ځاے- ټټي. (اصلاً د غايط معنٰی ړوغل- ژور) ځاے دے. او هرکله چې د بهر نه د کښېناستلو دپاره ډوغل غوندې لټولے شي، نو ځکه د ټټۍ دپاره ئې استعمال شروع شۀ). (۲) ګندګي- غل- سوټې وغېره.

**غائے لمے** :- (غا+ئِ+لَ+مې)-[اس-مذ-ج:مي]- غولونکے- هغه سور شان پرسوب چې د سترګو په خوا کښې پيدا شي. غولنه- غولنې

**غايات** :- (غا+يا+تْ)-[ع-اس-ج]- د ((غايت)) جمع ده. و___ غايت.

**غايت** :- (غا+يَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) انتها- اخر- انجام- اخري سر- پائې. (۲) غرض- مطلب.

دا زما د بخت اثر نۀ دے نو څۀ دے؟
له رقيبه چې شکوه په دا غايت کا (خوشحال)

**غايت درجه** :- (ـــدَ+رَ+جَ)-[عپ تر] (۱) انتهايي درجه- اخره درجه (۲) زيات نه زيات

**غايوي** :- (عا+يَ+وي)-[عف تر-صف]- غايه سره تعلق لرونکے- انجام مقصد- غرض ته منسوب.

**غايي** :- (غا+يي)-[ع-صفا]- د انتها- د اخري درجې- اخري.

**غبار** :- (غُ+با+رْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) دُوړه- ګرد- ګرد.

د دښمن د نيت غبار په سعيد څۀ کا
د ايرو مشته مرات لره جلا شي (سعيد)

(۲) خفګان- ملال- د زړۀ دورن والے- کدورت.

په خاطر باندې مې ستا د زړۀ غبار دے
همېشه مې په زړۀ پروت انبار انبار دے (رحمان بابا)

(۳) خُپ- خوپ- لړه- درجه. (۴) د ليک (خط) يو قسم دے. (و___ خط غبار) (۵) تت والے- (خصوصاً د نظر).

**خطِ غبار** :- (خَ+ط+طې+ـــ)-[عف تر-اس-مذ]- د خط (ليک) يو قسم دے- چې په دوو کاغذونو ليکلے شي. او هله لوستلے کېدے شي چې دغه دواړه کاغذونه لاندې باندې کېښودے او رڼا ته ونيوے شي- هسې که دغه کاغذونه د يوبل نه جدا وي دغه خط نشي لوستلے کېدے.

**غباړه** :- (غُ+با+ړَ)-[اس-مو-ج:ړې]- ګونګټه- مرغټانه.

**غباړے** :- (غُ+با+ړَے)-[اس-مذ-ج:ړي]- د يو بوټي نوم دے چې شين وي. د سپرلي په سر کښې پيدا کېږي. ګل ئې خوشبويي نۀ لري. د څاروو خوراک وي. د يو مچ نوم دے چې په سپرلي کښې څاروي خوري او چې څاروے وخوري نو په منډو شي.

**غبانده** :- (غ+با+نْ+دَ)-[و ــــ غباندے]

**غباندے** :- (غ+با+نْ+دَ+ے)-[ق-اس-مذ-ج:ي]- غلنګ- مرغړے- مېښيانے- هغه عدود چې په غوښه کښې وي.

**غبراء** :- (غَ+بُ+را)-[ع-اس-مذ]- زمکه- مزکه- د زمکې مخ.

د سما قمر به سو کړم
د غبراء قمـــره! راشه (خوشحال)

**د غبراء خلقه** :- (د زمکې مخلوق- بني ادم

محمد ئـــــې د غبراء خلقه بولي
کدوبې ئې ذاکران د احمد نوم دي (خوشحال)

**غبـرګ** :- (غ+بَ+رُ+ګْ)-[اصف-مذ-مو:ه]- برغد- بُـرَغ- دوه استوې- دوه څيزونه چې يوځاے وي- جوړه.

**غبرګ ټوپک** :- (دوه نالیز ټوپك.

اشنايه غبرګ ټوپك را واخله
چې ته ګوزار کړې زۀ ګولۍ در اچومه (ټپه)

**غبرګ زامن دې وُمره** :- (جمله)- يوه ښېره ده- چې جوړه زامن دې مړۀ شه! مطلب دا چې ډېر زيات غم او دوك دررسه.

بېلتونه غبرګ زامن دې وُمره
چې در معلوم شي د زخمي زړګي تاوونه (ټپه)

**غبرګ والے** :- (ــــ+وا+لَے)- برغدوالے- جوړه والے- جفت والے.

**غبرګلون** :- (غ+بَ+رَ+ګْ+لُو+نْ)-[اس-مذ]- د برغدولو- برغوولو عمل.

**غبرګو** :- (غ+بَ+رْ+ګو)- د ((غبرګې)) اضافي او مجروري وغيره. (متغيره) شکل.

**په غبرګو ليمو** :- (ـــ+لي+مو)- په دواړو سترګو- په ډېره خوشحالۍ په ډېر اخلاص او صداقت.

**په غبرګو وېشل** :- (په دواړو لاسونو وېشل- په لپو وېشل- په لپه تقسيمول.

**غبرګول** :- (غ+بَ+رْ+ګْ+و+لْ)-[امص]- برغدول- د يو نوم څيز يو سر را تاوول او د همدې بل سر سره ئې سم کښېښودل- برغول- څوك ښۀ وهل- يا سزا ورکول. جمله: فلانکے مې سم غبرګ کړو.

**څواب غبرګول** :- (څواب ورکول- د يوې خبرې په څواب کښې خپله کول- څواب برغدول

**خبره غبرګول** :- (د چا د خبرې په څواب کښې خپله خبره کول- د خبرې څواب ورکول- خبره برغدول.

**غبرګولے** :- (غ+بَ+رُ+ګو+لَے)-[اس-مذ]- د اسمان په دولسو برجونو کښې دريم برج- جوزا.

**غبرګـون** :- (غ+بَ+رْ+ګـو+نْ)-[اس-مـذ]- (۱) غبرګونـه- برغدونـه. برغونـه (۲) څواب- د خبرې په څواب کښې خبره.

**غبرګون کول** :- (پسته څواب ورکول- څواب ورکول.

ښۀ سلوك کړه چې لوك دې په سلوك شي
د چــــــوغل په بد وئيلو غبرګـــون مه (بېدل)

**غبرګونه** :- (غ+بَ+رْ+ګ+و+نَ)-[حمص]- برغدونه- برغونه.

**غبرګونے** :- (غ+بَ+رْ+ګو+نَے)- هغه ماشوم چې ورسره بـل غبرګ- برغ ماشوم پيدا شوے وي.

**غبرګوونکے** :- (غ+بَ+رْ+ګ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- برغدوونکے- برغوُونکے.

**غبرګه** :- (غ+بَ+رْ+ګَ)-[اس-مو-ج:ګې]- (۱) د غبرګ تانيث دے. (۲) هغه ښځه چې په يو وخت دوه بچي پيدا کړي. (۳) لپه- د دواړو لاسونه جوړه شوې پېمانه. (۴) د دوو تپو يا غرونو په مېنځ کښې د سېلانۍ اوبو لار.

**غبرګه شړۍ** :- (ــــ+شَ+ړَ+ی)-[ب-تر-اس-مو]- دوه پاټه يا دوه پاټې شړۍ.

**غبرګه کول** :- (وربرغدول- څواب ورکول- د چا د خبرې په څواب کښې څۀ وئيل. لکه: ما ورغبرګه کړه چې........

**په غبرګه کښې تلل** :- (د دوو غرونو يا تپو په مېنځ کښې د سېلابونو په لاره کښې تلل.

**غبرګې** :- (غ+بَ+رْ+ګې)-(۱) د ((غبرګه)) جمع ده. (۲) د ((غبرګه)) اضافي او مجروري وغيره. (متغير) شکل دے.

**غبرګې سرباندې راښکل** :- (د معمول نه دوه دوڼه کار کول. ډېر زيات کار يا محنت کول.

**غبرګې لوښې** :- (ـــ+لُو+نْ+ړِ+ې)

**غبرګې لوڼه** :- (ـــ+لو+نْ+ړَ)- دوه لوښې- دوه يو ځاے لوښې.

**غبرګېدل** :- (غ+بَ+رْ+ګې+دَ+لْ)-[امص]- (۱) برغدېدل- برغدکېدل برغېدل- تهه په تهه کېدل- د يو اوږدو نرم څيز (لکه تار- پړے- ټوکر کاغذ وغيره) داسې راتاوېدل چې دواړه سرونه ئې يو د بل دپاسه راځي. (۲) (را-ور-درسره) راستنېدل. واپس کېدل. لکه: هغه سحر تلے ؤ او ماښام رابرغد (رابرغ) شو.

**غبرګېدنګ** :- (غ+بَ+رْ+ګې+دَ+نْ+ګْ)-[اق-حمص] و ـــــ غبرګېدنه.

**غبرګېدنـه** :- (غ+بَ+رْ+ګې+دَ+نَ-[حمص]- (۱) برغدېدنه- برغېدنه- د يوتهه دپاسه بل تهه جوړېدنه. (۲) (را-ور-درسره)- پستنه راتلنه- ستنېدنه- واپس راتلنه.

**غبرګېـدونکے** :- (غ+بَ+رْ+ګېـ+دُو+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- برغدېدونکے- برغېدونکے- تهه په تهه کېدونکے.

**غبن** :- (غ+بَ+نْ)-[غ-اس-مذ-ج:ونه]- درغلنه- ټګي- دروهنه- خيانت- خورد برد کول- کوم مال چې د چا په حواله شوے وي. په هغې کښې بې ايمانۍ سره غلا کول.

**غبي** :- (غَ+بي)-[اس-صف]- هغه چې مازغۀ (مغزه) ئې پڅ وي. پڅ مغزے- د کمزورې ذهن خاوند. کند ذهن.

**غپ** :- (غ+پْ)-[اس-صوت]- د سپي د غپېدو اواز- غَوغَو.

د رقيب په درکو مې پروا نۀ شي
نۀ وېربړي امزرے د سپو له غپ (عبدالعظيم)

**غپا** :- (غَ+پا)-[اس-صوت]-(۱) د سپي مسلسل غپ غپ کول.

درسته شپه مې غوږ نيولے وي غپا ته
دغه سپے د يار د چم دے که پوهېږې (خ)

(۲) د ډېرو سپو د غپېدو اواز

**غپاند** :- (غ+پا+نْ+د)-[صف-مذ-مو:ه]- غپ غپ کونکے سپے- هغه سپے چې هر وخت غپېږي.

**غپاندے** :- (غَ+پا+نْ+دَ+ے)-[اصف- مذ-ج:دي] (و ــــــــ غپاند).

**غپـل** :- (غَ+پَ+لْ)-[امـص]- (۱) غـپ غـپ کـول- د سپي اواز کـول- غـپـا کـول- غَوغَوکول. (۲) اپلتې وئېل- د چا خلاف چتې چتې خبرې کول.

**غپند** :- (غَ+پَ+نْ+د)-[اصف-مذ-مؤ:ه-ج:ې]- غپ غپ کونکے- غپېدونکے- غپاندے- غپنده.

**غپندوکے** :- (غَ+پَ+نْ+دُو+کَے)-[و ــــ غپاندے]

**غپندے** :- (غَ+پَ+نْ+دَ+ے)-[و ــــــ غپاندے]

**غپول** :- (غَ+پَ+و+لْ)-[امص]- (۱) سپے چېړل چې په غپاشي- په غپ غپ کول- په غپا کول. (۲) د چاله خولې اپلتې اېستل.

**غپونګ** :- (غَ+پَ+وَ+نْ+ګ)-[قاموس]-[مذ-حمص]- (و ــــ غپونه).

**غپونه** :- (غَ+پَ+و+نَ)-[قاموس]- [مو-حمص]- سپي په غپا کول. سپي په غپ غپ راوستنه.

**غپوونکے** :- (غَ+پَ+وُ+نْ+کَے)-[مذ-فاع]- سپے په غپا کوونکے- څوک چې سپي غپوي.

**غپه** :- (غِ+پَ)-[ت-قاموس]- (۱) حمله- غوټه.

په غوټه کښې ټپوس کله کله باز دے
که ئې خلک د منګلو څښتن شمېري (خ خ)

(۲) غوپه. (۳) چپه- څپه- د ناروغۍ- په تېره تېره بيا د عصبي ناروغۍ حمله.

**غپهار** :- (غَ+پَ+ها+رْ)-[اس-صوت]- د سپي (يا د سپو) د غپېدلو اواز- غپا.

**غپېدل** :- (غَ+پَ+د+لْ)-[امص]- (۱) غپل- غپ غپ کول. (۲) بکواس کول- په زوره زوره (بې فائدې) خبرې کول- د جنګ خبرې کول.

**غپېدنګ** :- (غَ+پِ+د+نْ+ګَ)-[اق-حمص]- (و ـــــ غپېدنه).

**غپېدنه** :- (غَ+پِ+د+نَ)-[احمص]- (۱) غپ غپ کونه- غپا کونه- په غپېدو راتلنه. (۲) بکواس کونه- (بې فايدې) په زوره زوره خبرې کونه.

**غپېدونکے** :- (غَ+پِ+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-صف-مذ-ج:کي]- (۱) غپ غپ کونکے- غپا کونکے. (۲) بکواس کونکے. (بې فايدې) په زوره زوره خبرې کونکے.

**غپېدهٔ** :- (غَ+پِ+د)-[احمص]- (۱) غپېدنه- د سپي غپ غپ کونه (۲) بې فائدې خبرې کونه- بکواس کونه.

**غټ** :- (غَ+ټْ)-[صف-مذ-مو:ه]- (۱) (د نري ضد) پېړ- پېړ.

(۲) غوښن- څرب- څورب. (۳) مجازاً- مالدار- شته من- لوے حېثيت واله. (۴) لوے.

**غټ باز** :- (ـــــ+با+زْ)-[اپ تر-صف-مذ-مو:ه]- غټې خبرې کوونکے- ډوزمار- لاپو- لاهو.

**غټ پټ** :- (ـــــ+پَ+ټْ)-[اپ تر-صف-مو:غټه پټه]- پټ تابع مهمل دے- د غټ د تاکيد دپاره ورسره راوستے شي. ډېر غټ- ډېر غوښن- څورب.

**غټ توب** :- (ـــــ+تو+ب)-[اپ-تر-اس-مذ]- (۱) غټ وال- غوښن والے- څورب والے. (۲) مالداري- شته مني.

**غټ تيا** :- (ت+يا)-[اپ -تر-اس-مو]- و ـــــــــ غټ توب.

**غټ جوار** :- (ـــــ+جُو+وا+ر)-[اپ تر-اس-جم]- د نري جوارو ضد- مشهوره غله چې د بني ادمو عام خوراك دے.

**غټ خلک** :- (ـــــ+خَ+لْ+ق)-[اپ تر-اس-جم]- لوے خلک- شته من خلک- د لوې حېثيت خلک.

زړګيه صبر شه مه ژاړه
جانان په غټو خلکو ځان حسابوينه (ټپه)

**غټ سترګے** :- (س-تْ-رْ-ګَ+ے)-[اپ تر-اس-مذ-ج:سترګې]
(۱) غټو سترګو واله. (۲) بې حيا- بې شرمه

**غټ سړے** :- (ـــــ+س+ړَے)-[اپ تر-اس-مذ-ج:ړي]- لوے سړے- لوئې مرتبې واله سړے- شته من سړے- مالداره سړے.

**غټ غټ کتل** :- (په غټو سترګو کتل- په سترګو کتل- په غور سره کتل- د زړهٔ د اخلاصه ديدن کول- لکه: غټ غټ ئې راته کاتهٔ.

**غټ غټ وئيل** :- (لوئې لوئې خبرې کول- لاپې کول- ډوزې وېشتل.

**غټ کتل** :- (۱) په پرانستو کتل- په غور سره کتل- په غټو سترګو کتل- نبغ نبغ کتل.

د تهمت له غمه پروت يم سترګې پټې
زهٔ له شرمــــــه چاته غټ کتلے نشم (خواجه محمد)

(۲) په اوچت نظر کتل- په هسکو سترګو کتل- په جرات سره کتل.

**غټ کټ** :- (ـــــ+کَ+ټْ)- [اپر تر-صف-مو:غټه کټه]- غټ پټ- غټ او څورب سړے. (کټ تابع مهمل دے- د تاکيد دپاره ورسره راځي)

د دنيا غټان کټان چې راځي درومي
ښهٔ مثال راته ښکاره د ديو دجال شي (سعيد)

**غټ کوټ** :- (ـــــ+کْ+و+ټْ)-[اپ تر-صف-مذ-مو:غټه پټه]- غټ پټ- غوټ کوټ- لوے او څورب- لوے او تازه.

**غټ مازيګر** :- (ـــــ+ما+زي+ګَ+رْ)-[اپ تر-اس-مذ]- صفا مازيګر- ښکاره مازيګر- (د کوز مازيګر په مقابله کښې).

**غټ مشر** :- (ـــــ+مُ+شْ+رْ)-[اس-مذ]- لوے مشر- يوه عهده.

**غټ واله** :- (ـــــ+وا+لَ)-[اس-مذ]- پېړوالے- غټ والے- پنډوالے- ضخامت.

**غټ وال غالے** :- (ـــــ+وا+لَے)-[اپ تر-اس-مذ]- (۱) پېړوالے- پېړډوالے- غټ توب. (۲) مالداري- شته مني. (۳) څورب والے- غوښن توب.

**غټ وئيل** :- (مص-تر)- په جرات سره وئيل- صفا صفا وئيل.

**په غټ اواز** :- (ـــــ+آ+وا+زْ)- په لوړ اواز- په اوچت اواز- په چغه- په نعره.

**غټان** :- (غَ+ټا+نْ)-[اس-ج-مذ]- د غټ جمع ده. عموماً مجازي معنې کښې راځي. يعنې شته من خلک- مالداره خلک- د لويو عهدو يا مرتبو خاوندان.

**غټانې** :- (غَ+ټا+نې)-[اس-ج-مو]- د «غټان» تانيث دے. (و ـــ غټان)

**غټرکے** :- (غَ+ټ+رُ+کَے)- د «غټرے» تصغير دے. (و ـــــ غټرے).

**غټرے** :- (غَ+ټ+رَے)-[اس-مذ-ج:ري]- ټوټه- ټکړه- ګلوله- غونډ- ګرد- غونډے.

**غټو** :- (غَ+ټُو)- د «غټې» جمع اضافي او مجروري وغېره (مغيره) شکل.

**په غټو سترګو** :- (په پرانستو سترګو- په غړېدلو سترګو- په غور سره نبغ نبغ.

دانسته ګنــــــاه کــــــوې توبــــې وکاږي!!
لکه بت هسې په غټو سترګو خواب کړې (رحمان بابا)

**په غټو غټو کتل** :- (په پرانستو سترګو کتل- نبغ نبغ کتل.

**پـه غټـو ګـامو** :- (ـــــ+ګا+مو)- په لويو لويو ګامونو- په لويو لويو قدمونو. (مجازاً) زر، زر- مختصر.

**غټو** :- (غُ+ټو)- د «غټې» جمع اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دے. (و ـــــــ غټيو).

**غټو** :- (غُ+ټُو)-[اس-مذ]- غوټو واله- هغه څيز چې غوټې لري.

**غټوکے** :- (غَ+ټُو+کَے)- د غټ اسم تصغير- و ـــــــ غټ.

**غټوکے** :- (غُ+ټُو+کَے)-[و ـــــــ غوټکے]

**غټـول** :- (غُ+ټَ+و+لْ)-[امص]- (۱) لويـوال- (جسـماني لحـاظ سـره) پېـړول- پېړړول. (۲) څربول- غوښن کول. (۳) مضبوطول.

(۴) لويي ورکول- لکه: زهٔ پلار په کتاب وغټولم. (اق)

**غټونګ** :- (غَ-ټَ-وْ+نْ+ګْ)-[اق-حمص]- و ـــــــ غټونه.

**غټونـه** :- (غَ+ټَ+و+نَ)-[احمص]- لويَونـه (پـه وجـود) پېړونـه- څربونـه- غوښـن کونه.

**غټوونکے** :- (غَ+ټَ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- لويـه وونکے- (جسـماني لحاظ سره) پېړونکے- پيړونکے.

**غټه** :- (غُ+ټَ)-[اس-مو-ج:ټې]- د شکګو ډېرے.

**غټه** :- (غَ+ټَ)-[صف-مو-ج:غټې]- د «غټ» تانيث دے.

**غټه خبره** :- (ـــــ+خَ+ب+رَ)-[اپ تر-اس-مو-ج:غټې خبرې]- (۱) لويـه خبره- د لوئې خبره- ډوزه. (۲) اهمه خبره.

**غټه غړنده** :- (ـــ+غ+ړ+نْ+دَ)-[اپ تر-اس-مو-ج:دي]- د سترګو ګاټې.

**غټه کولمه** :- (ـــ+کُو+لْ+مَ)

**غټه قلمه** :- (ـــ+قَ+لْ+مَ)-[اپ تر-اس-مو-ج:مې]- د قلمو (کولمو) هغه برخه چې اخر سر کښې وي او د نورې کولمې په مقابله کښې لنډه شان خو غټه وي.

**غټه وجه** :- (ـــ+وَ+جَ)-[اپ تر-اس-مو-ج:غټې وجهې]- لويه وجه- لوے سبب- اهم سبب. اهم علت.

**شين غټه** :- (شي+نْ+ـــ)-[اپ تر-اس-مذ]- هغه فصل چې نوے رسيدلے وي. نيم رسېدلے فصل- شرهته.

**غټې** :- (غَ+ټې)- (۱) د ((غټه)) اضافي يا مجروري وغېره (مغيره) شکل.(۲) د ((غټه)) جمع ده.

**غټې پوښتې** :- (ـــ+پُ+خَ+تَ+ى)-[اس-مو-ج]- لوې پوښتې- شپږ برنۍ پوښتۍ.

**غټې دانې** :- (ـــ+دا+نې)-[اپ تر-اس-جم]- حقې ننکۍ.
(ار: چيچك) (انګ: سمال پاکس)

**غټې وريژې** :- (ـــ+و+ري+ژې)-[اپ تر-اس-جم]- د وريژو يو قسم چې غټې او کم قيمته وي- پنډې وريژې.

**غټېدل** :- (غَ+ټې+د+لْ)-[مص]- (۱) پيړېدل- پيړرېدل. (۲) څورب کېدل- څربېدل. (۳) مالداره کېدل- شته من کېدل.

**غټېدنګ** :- (غَ+ټې+دَ+نْ+ګْ)-[اق-حمص]- وـــــ غټېدنه.

**غټېدنه** :- (غَ+ټې+د+نَ)-[حمص]- څورب کېدنه- څربېدنه- پيړېدنه- پيړرېدنه.

**غټېدونکے** :- (غَ+ټې+دُو+نْ+کَے)-[اس-ما-مذ-ج:کي]- پيړېدونکے- پيړرېدونکے- څربېدونکے.

**غټېدۀ** :- (غَ+ټې+د)-[حمص]- وـــــ غټېدنه.

**غټے** :- (غَ+ټے)-[اس-مذ-ج:غټي]- غونډ سخت څيز- غونډارے- غټرے.

**غټے غټے** :- (ـــ+غَ+ټے)-[اپ تر-اس-مذ]- غونډاري غونډاري.

**غټے غټے کول** :- (غونډاري غونډاري کول- غونډاران جوړول.

**غوټکے** :- (غُ+و+ټَ+کے)-[اس-مذ-ج:کي]- (۱) هغه هلك چې د ماشوموالي نه وتے او لوے شوے وي. (۲) هغه هلك چې ځوانۍ ته نژدې شوے وي.

**غوټکۍ** :- (غ+و+ټَ+کَ+ى)- د ((غوټکے)) تانيث دے.

**غوټه** :- (غ+و+ټَ)-[اس-مو-ج:ټې]- ګره- ترون- عقده- غوټه. ګنډه (۲) په لرګي يا تخته کښې هغه کلك ځاے چې د څانګې مونډ پاتې شوے وي. دا لږ شان غونډ ځاے ډېر کلك وي. دا ځينې وخت د لرګي يا تختې نه جدا هم شي- ځکه د لرګي يا تختې عيب ګڼلے شي. (۳) په وجود کښې د څرمنې د لاندې يو غونډارے شان- ګلټۍ.

**غوټه پرانښتل** :- (ترون پرانستل- ګره پرانښتل- عقده پرانښتل.

**غوټه پرانستې کېدل** :- (ترون لرې کېدل- عقده واکېدل- ګرانه حل کېدل.

**غوټه کول** :- (يو تربله تړل- په غوټې سره يوځاے کول.

**غوټه کېدل** :- (۱) تړلے کېدل- غوټه ورکړې کېدل. (۲) د سپي او سپۍ د جوختېدو په وخت خپله کښې نښتل.

**غوټه لرې کېدل** :- ( غوټه پرانستې کېدل.

**غوټه ورکول** :- (غوټې سره تړل- تړل- ګره ورکول.

**د پرتوغانې غوټه** :- (هغه غوټه چې د پرتوګ د اغوستلو نه پس پرتوغانې له ورکولے شي.

**غوټه** :- (غ+و+ټَ)-[اس-مو-ج:ټې]- هغه کځوړه يا وړوکے پنډوکے چې پېسې ټکې پکښې تړلے شوې وي.. (هميانۍ).

**غوټې** :- (غُ+ټې)- (۱) د ((غوټه)) جمع ده. (۲) د ((غوټه)) اضافي يا مجروري وغېره (متغيره) شکل دے.

**غوټې غوټې** :- (ـــ+غ+و+ټې)-[اپ تر-صف]- (۱) هغه څيز چې ډېرې غوټې لري- يعنې ځاے په ځاے تړلے شوې وي. (۲) هغه څيز چې ځاے په ځاے پرې د غوټو په شان ځايونه راوتې وي لکه: غوټې غوټې لرګے. (۳) هغه څيرلے شوے لرګے يا تخته چې پکښې ډېرې کلکې غوټې وي.

**غوټيالے** :- (غُ+و+ټ+يا+لَے)- غټيوواله- هغه څيز چې پکښې ډېرې غوټې وي.

**غوټۍ** :- (غو+ټَ+ى)-[اس-مو]- کلۍ- شګوفه. (۲) وړوکے شان غونډ څيز. (۳) د جينۍ نوي را پورته شوې تيونه.

**په غوټۍ راتلل** :- (په ونه کښې د ګلونو غوټۍ نوې نوې پيدا کېدل- په غوټيو راتلل. غوټۍ کېدل. (بوټي)

**غوټۍ کول** :- (۱) کلۍ پيدا کېدل- په بوټي کښې شګوفه پيدا کول. (۲) د جينۍ په سينه تي رابښکاره کېدل.

**غثيان** :- (غَ+ث+يا+نْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) يوه بيماري- زړۀ خرابېدل قے يا اُلټۍ ورتلل.(۲) قے کول- اُلټۍ کول- کوز کتل.

د بلغم زحمت به درومي له هغۀ نه
چې غثيان په هره مياشت کا مکرر (خوشحال)

**غثياني** :- (غ+ث+يا+نې)-[عف تر-اس-مو]- د غثيان مرض لګېدل- اُلټۍ- قے- خوړ- کوزکتنه- خوا ګرځېدنه.

**غجره** :- (غَ+ج+رَ)-[اس-مو-ج:رې]- د يوې ځنګلي ونې جرړه چې اوږدې اوږدې څانګې لري- او پاڼې ئې پستې او څوکو واله وي.

**غجرۍ** :- (غَ+ج+رَ+ى)-[ق-اس-مو]- هغه ټوکے کوم چې نقشدار وي او د اس د زين د لاندې اچولے شي.

**غجکه** :- (غ+ج+کَ)-[اس-مو-ج:کې]- سرينده- (مشهور ساز).

**غجکې** :- (غ+جُ+کې)- د ((غجکه)) جمع ده.

**غجل** :- (غُ+ج+لْ)-[اس-مذ]- غوجل.

**غچ** :- (غ+چْ)-[اس-مذ]- کينه- بغض- دښمني- انتقام- بدل.

**غچ اخيستل** :- (وـــــــ غچ کښل)

**غچ کښل** :- (دښمني سرته رسول- بدل اخيستل. انتقام اخيستل.

**غچ کول** :- (بغض کينه کول- دښمني کول.

**غچ لرل** :- (مص-تر)- کينه لرل- بغض لرل- (په زړۀ کښې) دښمني يا عناد لرل. د بدل يا د انتقام خواهش لرل.

**غچ** :- (غَ+چْ)-[اس-صوت]- د قېنچۍ د چلېدو اواز.

**غچک** :- (غ+چَ+كْ)-[ف-اس-مذ]- سرينده- مشهورساز- غچکه.

**غچول** :- (غُ+چَ+و+لْ)-[مص]- (۱) اواز کښل- د غچ غچ اواز وېستل (۲) د غچ غچ اواز سره پرې کول- په قېنچۍ سره پرې کول- قېنچې کول.

**غچوونکے** :- (غ+چَ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- په غچ غچ سره پرې کوونکے- د قېنچۍ په شان يا په قېنچۍ سره پرې کوونکے قېنچې کوونکے.

**غچه** :- (غُ+چَ)-[حرف]- تکيه کلام دے- خوچه. (وـــــ غوچې)

تۀ چې خيال په زر زرې جامو کړې غچه
د اسمان ستـــوري به نشي په دا ټچه (خوشحال)

**غچي** :- (غَ+چي)-[اس-مو]- قېنچې.

**غچياني** :- (غَ+چي+يا+نې)-[اس-مو-ج]- د ((غچي)) جمع ده. قېنچيانې.

**غچېدل** :- (غ+چي+د+لْ)-[مص]- (۱) د ښاروي وغېره د تلو په وخت اواز پيدا کول. (۲) د حرکت او خوزېدو په وخت کښې د کټ اواز کړچېدل.

**غچېدنه** :- (غ+چي+دَ+نَ-[احمص]- د غچ غچ په شان اواز کونه- غچ غچ کونه.

**غچۍ** :- (غ+چَ+ی)- د «غچي» جمع ده. قبنچي- قبچياني.

**غخ** :- (غ+سْ-[اس-مذ]- و ـــــ غچ

**غدار** :- (غَ+دْ+دا+رْ-[ع-صف-اس-مذ-ج:ان]- غدر کوونکے- بې وفا- نمك حرام- باغي- ياغي- سرکښه.

**غداره** :- (غَ+دْ+دا+رَ-[اعپ تر-اس-صف-مو-ج:رې]- د «غدار» تانيث دے.

**غداري** :- (غَ+دْ+دا+رِي)-[اعف تر-اس-مو]- بې وفايي- نمك حرامي- بغاوت- ياغي توب.

**غداري کول** :- (۱) بې وفايي کول- نمك حرامي کول. (۲) بغاوت کول نافرماني کول- ياغي کول.

**غدر** :- (غَ+د+رْ-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) بې وفايي- بې لوظي. (۲) بغاوت- نافرماني.

**غدر کول** :- بغاوت کول- ياغي کول- فساد برپا کول- مخالفت کښې (په جنګ) راولاړېدل.

**غدکه** :- (غ+د+کَ-[اس-مو-ج:کې]- يو قسم جامه ده. چکمنه- چينه- څپنه.

**غدوے** :- (غَ+دُو+ے)-[اس-مذ]- غل- ډاکه مار- داړه مار. هغه سړے چې نورو داړه مارانو سره شي او په جار غلا کوي. (دا لفظ عموماً «غل» سره يو ځاے راځي يعنې: غل غدوے)

**غده** :- (غَ+دْ+دَ-[ع-اس-مو-ج:دې-غدود]- (۱) هغه غوټه شان کومه چې د بني ادم په بدن کښې د څرمن د لاندې را پيدا شي. مرغړے- مغبرے. (۲) هغه غوټې شان کومه چې د بني ادم په وجود کښې ځائي موجودې وي او مختلفې وظيفې سرته رسوي.

**غدۍ** :- (غ+دَ+ی)-[اس-مو]- داړه- چپاؤ- حمله- تاخت.

هر چې بد شومت دے خپل شومت ورلره بس دے
تل به بـــاندې تاخت دي د خپل فعـــل د غديو (خوشحال)

**غدۍ اچول** :- (داړه اچول- د لوټ مار دپاره حمله کول- تاخت کول- شواخون کول.

**غدۍ اخيستل** :- (ډېره بيړه کول- تُندي کول- جلتي کول.

**غدۍ پرختل** :- (په چا داړه پرېوتل- لوټ کېدل.

**غدۍ کول** :- (حمله کول- تاخت کول- چپاؤ کول- د لوټ مار دپاره حمله کول- داړه اچول- شواخون کول.

**غدۍ کېدل** :- (حمله کېدل- شواخون کېدل- داړه پرې وتل.

**غدۍ نيول** :- (و ـــــ غدۍ اخيستل.

**غذاء** :- (غ+ذا)-[ع-اس-مو-ج:ګانې]- خوراك- خواړۀ- خرومه- د خوراك هر هغه څيز په کوم چې د بدن وده کېږي.

**غذائيت** :- (غ+ذا+ئِ+ی+تْ-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- د غذا (خوراك) جوړېدو خصوصيت. د بدن د برخې (جز) جوړېدو قابليت.

**غر** :- (غ+رْ-[اس-مذ-ج:ونه]- (۱) د کاڼو لوے قدرتي ټوپ- کوه. (۲) مجازاً ډېر لوے څيز- ډېر لوے. لکه: تاته معمولي شان کار هم غر ښکاري. (۳) د پښتو د يو لوے شاعر فضل احمد تخلص چې د قام د قدرداني نه مايوسه شۀ او خپل کلام ئې وسوځاوۀ.

**غر ازغے** :- (ـــــ+اَزْ+غَے)-[ق-پ-تر-اس-مذ-ج:غي]- يو غرئيز ازغن بوټے دے.

**غر اوسمه** :- (ـــــ+اَ+وْ+سَ+مَ-[اپ تر-اس-ظر]- غر او ميدان- غرئيزه علاقه او ميداني- هواره علاقه- مراد ترې هر ځاے.

**غر بوړے** :- (ـــــ+بو+ړے)-[اپ تر-اس-مذ-ج:ړي]- هغه مشين چې غرونه کښې سوري کوي.

**غر پناه کېدل د تنې نه** :- (غټه تنه لرل- غټ پټ سړے- (عموماً د بېکاره سړي په حقله طنزاً وئيلے شي)

**غر جوړول** :- (لوے څيز جوړول- د معمولي شان خبرې نه غر جوړول- د معمولي شان خبرې نه ډېره لويه خبره جوړول.

**غرزي** :- (ـــــ+زَ+ی)-[اپ تر-اس-مو]- د «غرزے» تانيث دے. د غر- غرۀ لور- په غرۀ کښې پيدا شوې- کوهستانۍ.

**غرزے** :- (ـــــ+زَے)-[اپ تر-اس-مذ-ج:ي]- د غر زوے- د غر زېږدلے په غرۀ کښې پيدا شوے- کوهستانے.

**غر سورے کول** :- (د غر په مېنځ کښې سُورے جوړول- مجازاً ډېره لويه کارنامه کول.

**غرشين** :- (ـــــ+شي+نْ-[اپ تر-صف-مذ-مو:ه]- غرنے- د غرۀ اوسېدونکے- يا چې غر سره تعلق لري- غرڅنے- غريڅے.

**غر ښکارېدل** :- (۱) د غر هومره لوے ښکارېدل. (۲) ګران او سخت کار ښکارېدل.

**غر منګے** :- (ـــــ+مَ+نْ+ګَے)-[اصف]- د غر هومره- کوه پيکر.

**غر منګي** :- (ـــــ+مَ+نْ+ګِي)-[اس-مو]- د غر هومره لوے والے يا قد وجود لرنه- لوے والے.

**غر نيول** :- (و ـــــ غر سُورے کول)

**غروال** :- (ـــــ+وا+لْ-[اس-مذ-مو:ه]- غرنے- د غرۀ اوسېدونکے- غرڅنے.

**غر وښتۀ** :- (ـــــ+وېـ+ښ+تْ-[ق-پر-تر-اس-جم]- يو قسم غرئيزه ګياه ده- د منجو په شان وي- خو پسته او سور بخنه وي. عموماً په جوماتونو (جماعتونو) کښې غوړولې شي. (د قندهار خواوشا کښې ورته غومبك وائي). بروېخې

**په غر ختل** :- (۱) نقطي- معنې واضحې دي- په غر کښې په پورته تلل (۲) استعارةً: ډېر ګران کار کول. (۳) استعارةً: په غر ختنه- ډېر سخت او ګران کار لکه: دا معمولي شان کار هم تا دپاره په غرختل دي.

**د علم غر** :- (دَ+عِ+ل+مْ+ـــــ)-[اپ تر-اس-مذ-ج:ونه]- مجازاً ډېر لوے عالم- د غر په شان لوے عالم.

**دغر په شان** :- (۱) لکه د غر- مضبوط- ټينګ- نۀ خوځېدونکے. (۲) ډېر لوے- د غر هسې عظمت او لوے والے لرونکے.

**د غر هومره** :- (ډېر لوے لکه: د غر هومره احسان ئې راباندې وکړ.

**کله د غر** :- (استعارةً: ډېر مضبوط- چې څوك ئې خوځولے نۀ شي.

**ور غر برابرول** :- (ټُك بندي کول- دروغ رښتيا يو ځاے کول- څۀ بندو بست کول- په څۀ چل کار روانول.

**غر** :- (غَ+رْ-[اس-صوت]- (۱) د تېزې منډې اواز- تېزۍ سره په خوا کښې د تېرېدلو اواز- شغ. (۲) استعارةً: تېزۍ سره. (۳) د دېوال د پرېوتو اواز لکه: يو غر سره دېوال پرېوت.

**غر غر** :- (ـــــغ+رْ-[اس-صوت](۱) د «غر» په شان پرله پسې اواز. غرهار. (۲) د موټر لارۍ وغيره اواز.

**غرغر وهل** :- (تېزۍ سره منډه کول- ناڅاپه تېښته کول.

**په غر غر تلل** :- (تېزۍ سره تلل- په تېزه منډه تلل.

**غـر** :- (غُ+رْ-[صوت-مذ]- (۱) د «غُر غُر» اواز ابستل- قرقر کول. (۲) ورو ورو او پټې پټې خبرې کول. (۳) ځان سره د شکايت په طور يا په غصه کښې څۀ وئيل.

**غرّپیشه** :- (ـــ+پي+شَ)-[ف-اس-صوت]- (۱) د غُر غُر پیشي پیشي اواز- (۲) د غصي نه ډکې خبري- د رعب داب خبري ګوربدنه. په دې صورت کښې غالباً چې غُرقش نه وتے دے) (۳) پس پساري کول- پټې پټې او ورو ورو خبري.

**غوا** :- (غَ+را)-[اس-صوت]- (۱) د «غَرْ» په شان اواز- غرغر- (۲) د توپو اواز- درزار. (۳) وېروونکے- دروند اواز چې مسلسل راځي.

**غـرا** :- (غَ+رْرا)-[ع-صف-مـو]- (۱) ځلنـد- ځلکېـدونکے- روښـان- رون- پرقنده. (۲) ډېر ښه- ډېر اعلیٰ.

قصيــــدې لــــرم غـــــرا له هره بابه
په حکمت په نصيحت کښې مالامابه (خوشحال)

**غراب** :- (غُ+را+بْ)-[ع-اس-مذ-ج:ان]- کارغهٔ- قارغهٔ- کارګهٔ.

**غرابت** :- (غَ+را+بَ+تْ)-[ع-اس-مذ]- عجيبه والے.

**غـراره** :- (غَ+را+رَ)-[اس-مـو-ج:رې]- د خـر بـوره. (۲) مجـازاً شـلېدلے تـوکے وغېـره. (۳) پـه خولـهٔ کښـې اوبـهٔ اړول راړول- خولـهٔ کنګالول. (۴) د ارتـو پينڅو يـو خاص قسم پرتوګ کوم چې د هندوستان (مسلماناني) زنانه اغونـدي. (۵) د مېـوې دانـې يـا دبـل کـوم داسـې څيـز، بـوجۍ، خـولۍ، خرکيجه.

**غـراري** :- (غَ+را+رې)- (۱) د «غـراره» جمـع ده. (۲) د «غـراره» اضـافي او مجروري وغېره (مغيره) شکل.

**غرامت** :- (غَ+را+مَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه-ات]- (۱) تاوان- نقصان.

چې نهٔ مے، نهٔ معشوقه، نهٔ ګشت د ګلو
تېرې عُمـــــر دے په غم، په غرامت (خوشحال)

(۲) د نقصان تلافي- جرمانه.

**غران** :- (غِ+را+نْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- د يوې سکې نوم دے- نيمه روپۍ- قران.

**غرانداز** :- (غْ+رْ+نْ+دا+ز)-[اس-مـذ-ج:ونـه]- د ورو د لوبـو هغـه څيـز چې پـه څرمن وغېره کښې تار واچوي او چورلوي ئې- بربرانکه- بغبغے.

**غرانډه** :- (غَ+را+نْ+ډَ)-[اس-مو-ج:ډې]- د اور لمبه-او ګورلوګے. غرغنډه.

**غـراوو** :- (غَ+را+وُو)-[اس-مـذ]- د ماشـومانو د غړولـو يـوه الـه. چې پـه يـوه خاورينه وره شان پيالۍ باندې څرمن وخېژوي او داسې د لکۍ. تار په دغه څرمن کښې ونښلوي او بل سر ئې يو وړوکي شان لرګي سره وتړي. بيا چې دغه لرګے په لاس کښې ونيسي او دغـه پيـالۍ. ترې چاپېره تېزۍ سره تاووي. نو دغې چينډخ په شان اواز ترې پيدا کېږي.- غرندے.

**غرائـب** :- (غَ+را+ئـے+بْ)-[ع-اس-ج]- د «غريبـه» جمـع ده. عجائـب. عجيبـه (څيزونه).

**غرَب** :- (غْ+رَ+بْ)-[اس-صوت]- (۱) د وهلو اواز. (۲) د کوم درونـد څيـز د بـره نه د راغورزېدلو اواز. (۳) ګوزار ورکول- وهل.

**غرب ايستل د چانه** :- (ګذار ورکول- وهل)

**غرب غروب** :- (۱) د وهلو ډبولو اواز. (۳) د پرزولو را پرزولو اواز. هغه قبر هم ورك شه چې پکښې غرب غروب نهٔ وي. (متل)

**غرب غروب جوړول په چا** :- (۱) شورشار جوړول- درز دروز جوړول. (۲) ډېر وهل- ډبول.

**غرب** :- (غْ+رْ+ب)-[ع-اس-ظر]- (۱) د مغرب لور- هغه طرف چې نمر ورکښې ډوبېږي. نمر پرېواتهٔ طرف- لوئېديز- لوئېديځ. (۲) د قبلې طرف (صرف شرقي ملکونو دپاره). (۳) د نمر پرېواتـهٔ د لـور ملکونـه- مغربـي ملکونـه. (۴) يورپي ملکونه.

**غربا** :- (غْ+رَ+با)-[اس-صوت]- متواتر غرب اواز- پرلـه پسـې د وهلو اواز. (۲) د خرپ اواز.

ګاجري! تاپسې نه يم تا غربا پسې يم. (متل)

**غرباء** :- (غُ+رَ+با)-[ع-اس-ج]- د «غريب» جمع ده. غريبانان. خوار او مفلس خلک- بې وطنه خلک (په عربۍ کښې د غريب معنٰی د مسافر او د بې وطنه ده- په پښتو کښې هم استعمالېږي).

**غربال** :- (غْ+رْ+با+لْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- غلبېل- چاڼ- چاڼے. پروېزے- پروېځے- بېروزے. (د غلبېل لفظ د غربال نه وتے دے).

لر عېب د بل و تا وته بسيار برېښي خودبينه
پټ شوله تا نه خپل ډېر سورلفونه تر غربالـه (حافظ)

**غرباوهٔ** :- (غْ+رَ+با+وْ)-[حمص]- غربونه- وهنه ټکونه. غربونه- ابستنه.

**غربت** :- (غُ+رْ+بَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) غريبي. خواري- مفلسي. (۲) مسافري- مسافرت- بې وطني.

ثوابت ئـې ثابت نه شو په غربت کښې
بې فروغه ئې کړم د بخت له چراغدانه (حافظ)

**غربړي** :- (غْ+رْ+بَ+ړي) شور- غوغا- هنګامه

**غربـول** :- (غْ+رَ+بَ+و+لْ)-[مص]- د غـرب غـرب اواز سره وهل- وهل ټکول- ډېر زيات وهل- ډبول.

**غربون** :- (غْ+رْ+بُو+نْ)-[اس-مذ]- وـــــ غربين.

**غربونګ** :- (غْ+رَ+بَ+و+نْ+ګْ)-[اق-حمص]- وـــــ غربونه.

**غربونه** :- (غْ+رَ+بَ+وُ+نَ)-[حمص]- وهنه ټکونه- ډېره ډبونه.

**غربوونکے** :- (غْ+رَ+بَ+وُو+نْ+کے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- وهونکے ټکونکے- ډبوونکے.

**غربهار** :- (غْ+رَ+بْ+بَ+ها+رْ)-[اس-صوت]- پرلـه پسـې د غـرب غـرب اواز- غربا- غرب غروب. (د وهلو ټکولو اواز)

**غربے** :- (غْ+رَ+بے)-[اس-مذ-ج:بي]- بکسوا- د کمربند وغېره د تړلو کُنډه.

**غربي** :- (غَ+رْ+بي)-[ع-صف]- د غرب د طرف- د لوئېديځ د طرف. د قبلې د اړخ- (د شرقي ملکونو دپاره). لکه: غربی دروازه.

**غربېړ** :- (غَ+رْ+بي+ړْ)-[اس-مذ]- (۱) بېړه باړه- ګڼه ګوڼه. (۲) شور زوږ- شور شار. غُربړي

**غربېړ جوړول** :- (شور غوغا جوړول.

**غربېل** :- (غْ+رْ+بي+لْ)-[اس-مذ]- وـــ غربال.

**غـربين** :- (غَ+رْ+بي+نْ)-[اس-مـذ-ج:ونـه]- د پخـواني وختونـو يـو قسم ټوپك چې خولهٔ به ئې ارته وه. بيا وروستو وختونو کښې په وادهٔ ښادۍ کښـې د تشو ډزو دپاره پکارولے شهٔ.

**غربينه** :- (غُ+رْ+بي+نَ)-[اس-مع]- وره شان قبيله ده- د روايت لـه رويـه د اصلـه قريشيان دي. غربينه د دوې د نيکهٔ نوم وُ. چې دوه زامن ئې درلودل. د يو نوم صوفي چې دغه د غربينه قبيله د علوصوفي اولاد دے، چې مزار ئې د کرمې په وادۍ کښې دے. ددې قبيلې څلور څانګې دي. بال خېل- حېدر خېل- مدخېل او علي خېل.

**غربيون** :- (غَ+رْ+بي+يُو+نْ)-[او ــــــ غربيان]

**غرپ** :- (غُ+رَ+پْ)-[اس-صوت]- دحملې اواز- د وردانګلو اواز.

**غرپ وهل** :- (حمله کول- وردانګل- (خصوصاً په وېنا کښې).

دا دوهم را باندې غرپ وهي چې غلے (خوشحال)

**غرپر** :- (غُ+رْ+پ+رْ)-[اس-صوت]- (۱) د ګېډې د قُرقُر اواز- ګړګړ. (۲) شور

شار- شر او شور.

**غرپرت** :- (غُ+رْ+پ+رْ+ت)-[اس-مذ]- بېهوده خبرې- فضولې خبرې.

**غرت وهل** :- په زوره ټيز اچول.

**غوت** :- (غ+رْ+تْ)-[اس-صوت]- د ټيز اواز

**غرتک** :- (غُ+رْ+تُ+ك)-[اس-مذ-ج:ان]- (۱) فضولې خبرې کونکی- ياوه ګو. (۲) ورو‌کی ټيز.

**غرتن** :- (غ+رْ+تَ+نْ)-[اس-صف]- غرتو- فضولې خبرې کوونکی- ياوه ګو- غرتك. ځان خوښې- خود پسند.

**غرتو** :- (غ+رْ+تُو)-غرتې کوونکی- فضولې خبرې کوونکی. بکواسي.

**غرته** :- (غ+رْ+تَ)-[اس-مو-ج:تې]- (۱) فضول خبره- خوشې خبره. بکواس. (۲) کُنه- مقعد. (۳) ډوزه- لاپه- ناشائسته خبره. ناشولته.

**غرتې** :- (غ+رْ+تې)- (۱) د ((غرته)) جمع ده. (۲) د ((غرته)) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دی.

**غرتی** :- (غ+ر+تَی)-[اس-مذ-ج:تي]- غونډارے- (د قند وغېره)

**غرچ** :- (غ+ر+چْ)-[اس-مذ]- بېهوده- عبث.

عقل شرع په غاښ وچيچي کرچ کرچ
بې دليل چې شاه فرمان ورکړي غرچ

**غرچ** :- (غ+ر+چْ)-[اس-صوت]- کرچ کرچ.

**غرچهارے** :- (غ+رْ+چْ+چَ+ها+رَ+ے)-[اس-صوت]- د غاښونو يوبل سره د مښلو اواز- کرچ کرچ کونه- کرچهار.

**غرچېدل** :- (غ+رْ+چې+د+لْ)-[مص]- (۱) د غاښونو په خپله کښې جنګېدل- کرچېدل. (۲) دزلزلې په وخت د کوټې د چت دتيرونو او لهرو (کړو، برګو) اواز کول- کرچېدل. (۳) د هر لرګو نه جوړ څيز په حرکت کښې اواز پيدا کول.

**غرچېدل** :- (غ+رْ+چې+د+لْ)-[مص]- د غوې اواز کول- په غصه- قهر يا مستۍ کښې آواز کول.

**غرچېدنه** :- (غ+رَ+چې+دِ+نَ)-[حمص]- د غرچ غرچ يا کرچ کرچ اواز کونه- کرچېدنه.

**غرچېدونکے** :- (غ+رَ+چې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- دغرچ غرچ يا د کرچ کرچ اواز کونکی. کرچېدونکی.

**غرڅپه** :- (غ+رْ+څْ+س+پَ)-[اس-مو-ج:پې]- (۱) د غرۀ نه په تيزۍ راتلونکې سېلاب. (۲) د غر په شان (لويه) چپه.

**غرڅنه** :- (غَ+رْ+س+نَ)- د ((غرڅن)) تانيث دی.

**غرڅنۍ** :- (غَ+رْ+س+نَ+ی)- د ((غرڅنی)) تانيث دی. و___ غرڅنی

**غرڅنے** :- (غَ+رْ+س+نَے)-[اس-مذ-ج:ني]- (۱) غر سره تعلق لرونکی. غر ته منسوب. غرئيز. (۲) د غرونو اوسېدونکی- کوهستانی. (۳) ساده- غېر مهذبه- جټ. (۴) د غرۀ ځناور.

**غرڅه** :- (غَ+رْ+س)-[اس-مو-ج:غرڅې](۱) د غرۀ وز- بيز- چېلی. (۲) و_ غرڅنی

**غرڅه ګل** :- (___+ګ+لْ)-[پ تر-اس-مذ]- د يو غرئيز بوټي نوم دی.

**غرډپه** :- (غُ+رْ+ډ+پ)-[اس-مو-ج:غرډپې]- لاپه- ډوزه.

تروبه ځان تر هر چا ښۀ کړے
کــــــه ښۀ کېږي په غرډپه (خوشحال)

**غرډلپې** :- (غُ+رْ+ډَ+لپې)-(۱) د ((غرډپه)) جمع ده. (۲) د ((غرډپه)) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دی.

**غرډپې وهل** :- (لاپې شاپې وهل- دوزې وهل.

**غرز** :- (غ+رَ+زْ)-[اس-صوت]- د ديوال يا د داسې درونـد څيـز پـه زور سره د راغورزېدلو اواز. غرب- درز- درب.

**غرزا** :- (غ+رَ+زْ+زا)-[اس-صوت]- د غرز غرز پرلـه پسـې اواز. غربا- غرزهار- دربهار- غربهار.

**غرزول** :- (غ+رَ+زَ+وُ+لْ)-[مص]- دربول- غربول- وهل- ټکول- ډېر وهل.

**غرزونګ** :- (غ+رَ+زَ+ؤ+نْ+ګ)-[اق-حمص]- و___ غرزونه.

**غرزونه** :- (غَ+رَ+زَ+وُ+نَ)-[حمص]- غربونه- دربونه- ډېره وهنه- ټکونه

**غرزوونکے** :- (غ+رَ+زَ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- دربوونکی- غربوونکی- ډېر وهونکی.

**غرزے** :- (غ+رَ+زے)-[اس-صوت]- (۱) د غرز آواز- (۲) د توپې يا د ټوپك اواز- ډز-ډزار.

**غرزے** :- (غُ+رْ+زَے)-[اس-مذ-ج:زي]- بوغمه- ګردم.

چــې پــه خولــۀ چاتــه څــۀ نــۀ وائــي لــه ډاره
پــه ســينه کښــې دې غــرزے شــه کينــه ګــره

**غرزې پرزې** :- (غُ+رْ+زې+پ+رْ+زې)- غورزې پرزې- لاس او پښې اخوا دېخوا غورزول راغوزول.

**غرزې پرزې کول** :- (په ناجوړتيا کښې په بېهوشۍ يا هيجابۍ حالت کښې لاس و پښې اخوا ديخوا غورځول را غورځول.

**غرزېدل** :- (غ+رَ+زې+دُ+لْ)-[مص]- غربېدل- دربېدل- ډېر وهل خوړل

**غرزېدۀ** :- (غ+رَ+زې+د)-[و___ غرزېدنه]

**غرړل** :- (غ+رْ+ړ/ګ+لْ)-[مص]- د سپي هغه اواز چې چاته په غصه کښې د حملې نه اول اوباسي. غور غور کول- غرارې کول.

**غرړلے** :- (غُ+رْ+ړ/ګ+لَے)-[اس-صوت]- غورغور کونه- غورغورے- غرړے

**غرړے** :- (غ+رْ+ګ/ړے)-[اس-صوت]- د سپي د غور غور اواز کوم چې د غصې په حالت کښې چاته د حملې په وخت وباسي.

**غرسپے** :- (غ+رْ+س+پَے)-[اس-مذ-ج:غرسپي]- هغه ډېه يا دونکاچه چې د اوبو د مشك يا د منګو وغېره دپاره جوړولې شي بېځل- ګړونج.

**غرش** :- (غُ+رْ+ر+شْ)-[ف-اس-مذ]- (۱) غُرغُر کول- (۲) غرمېېدل- غرمبا.

**غرشين** :- (غَ+رْ+شي+نْ)-[اس-صف-مذ-مو:ه]- (۱) په غرۀ کښې کښېناستونکی- کوه نشين. (۲) د پښتنو يوه قبيله ده.

**غرض** :- (غ+رَ+ضْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) مقصد- مطلب- حاجت- لاغا.

زاهدان طلب د حُورو د جنت کا
بې له تا نشته په نور چار نا غرض (خواجه محمد)

(۲) نيت- اراده.

**غرض بودل** :- (مطلب بودل- حاجت بودل- کار بودل- مقصد بودل.

**غرض پوره کېدل** :- (مطلب تر سره کېدل- مقصد حاصلېدل- حاجت پوره کېدل.

**غرض کول** :- (د چا په معامله کښې دخل کول (چاسره) توجه ورکول- مطلب لرل.

که تۀ نه کړې په بل چا باندې غرض
بل به نۀ کــاندي په تا باندې غرض (رحمان بابا)

**غرض لرل** :- (مص-تر)- (۱) مطلب لرل- ارزو لرل- خواهش لرل.

(۲) توجه لرل- دلچسپي لرل. لکه: تهٔ خپل کار سره غرض لره.

**غرض مند** :- (ــــ+م+نْ+د)-[عف تر-صف-اس-ج:ان]- حاجتمند- حاجت لرونکے- محتاج- غرضي.

**غرض منده** :- (ــــ+م+نْ+دَ)- د غرض مند- من تانيث دے.

**غرض مندي** :- (ــــ+م+نْ+دي)-[عف-تر-اس-مو]- حاجت- احتياج.

**بې غرض** :- (بې+ــــ)-[عف تر-صف]- بغير د څهٔ غرض نه- بغير د څهٔ مطلب يا مقصد نه.

**خود غرض** :- (خُ+دْ+ــــ)-[عف-تر-صف]- خپل غرض پوره کونکے خپل مطلبه- خپل مطلبي. هغه سړے چې د څهٔ مطلب دپاره ئې څان لېونے کړے وي- غرضي- مطلبي.

**دغرض يار** :- (ــــ+يا+ر)- هغه سړے چې صرف د خپل غرض ملګرے وي.

**غرضي** :- (غَ+رَ+ضي)-[عف تر-اس-ج:ان]- (۱) غرضمند- حاجتمند (۲) خواهش لرونکے- دلچسپي لرونکے. (۳) غرض سره متعلق غرض ته منسوب.

**غرغچ** :- (غَ+رْ+غَ+چْ)-[اس-مذ]- د جنګ لفظ دے. د جنګ کلمه.

**غرغچ کول** :- (د جنګ خبرې کول- جنګ کول.

**غرغچ** :- (غَ+رْ+غُ+چْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- ډغره- ټکره- جنګېدنه.

**غرغچ وهل** :- (ډغره وهل- سره جنګېدل- متصادم کېدل.

**غرغانک** :- (غُ+رْ+غ+را+نَ+کْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- د ماشومانو د لوبو څيز.

**غرغرک** :- (غَ+رْ+غَ+رَ+کْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- يوه اله ده- جرثقيل.

**غرغره** :- (غَ+رْ+غَ+رَ)-[اس-مو-ج:رې]- لمبه- شعله- غرغنډه.

**غرغره کول** :- (لمبې کول- غرغنډې کول.

اور مې په زړهٔ کښې غرغرې کړي
لکه د شوې پانې اوچ مې شو غوړونه (ټپه)

**غرغړ** :- (غَ+رْ+غَ+ړْ)-[اس-مذ]- (۱) تکليف- مصيبت- سختي- عذاب. (۲) ګړګړ (اواز)

**په غرغړ اخته کېدل** :- (په عذاب اخته کېدل- په مصيبت کښې را ګېرېدل- په سخته کښې ګېرېدل.

**غرغړه** :- (غَ+رْ+غَ+ړَ)-[اس-مو-ج:ړې]- (۱) غرغره- په خولهٔ کښې اوبه اړول را اړول- خولهٔ کنګاول- (۲) ګړګړے چې د کوهي نه پرې اوبهٔ راوباسي. (۳) د نمر (نور) ډوبېدهٔ. (۴) د اوښ بربر (اواز) (۵) د جنګ په وخت يوه ويرونکې چغه. (۶) د غر يا د لوړې را غورځېدنه. (۷) منت زاري- جګجګي. (۸) چغه- نعره.

**غرغړه کول** :- (۱) غرغره کول- په خولهٔ کښې اوبهٔ اړول راړول. (۲) د اوښ اواز کول- بربړېدل. (۳) په زوره زوره ژړا کول- فرياد کول.

**غرغړه کېدل** :- (۱) د نمر سترګه په افق کښې په ډوبېدو کېدل. لکه: د نمر سترګه غرغړه شوه. (۲) د غر يا د ډېرې لوړې نه راغورځېدل

**په غرغړه بودل** :- (د نمر (نور) په ډوبېدو ((بودل)) د کوز مازيګر وخت ((بودل)).

**په غرغړه کول** :- (په دار خېژول- پانسي کول- په غرغره کول.

**غرغړۍ** :- (غَ+رْ+غَ+ړَ+ى)-[اس-مو]- د مرى يا د حلق اواز

**غرغړۍ کول** :- (خولهٔ کنګالول- په خولهٔ کښې اوبهٔ اړول را اړول او بيا بهر غورځول. غرغرے کول.

**غرغړۍ وهل** :- (مص-تر)- (۱) د اوښ په زوره زوره بربړېدل. (۲) د بني ادم چغې وهل- نعرې سورې وهل.

**غرغره** :- (غَ+رْ+غَ+ک/ژَ)-[اس-مو-ج:رې]- جرس- يا داسې قسم د غړولو اله.

**غرغشت** :- (غَ+رْ+غ+شْ+ت)-[اس-مع]- غورغشت- د پښتنو د يو ستر نيکهٔ نوم دے چې د سړبن او د بيټين ورور ؤ. په شجرو کښې دا درې واړه د قيس عبدالرشيد زامن ښودلے شوي دي.

**غرغښت** :- (غَ+رْ+غُ+خ/شُ+تْ)-(و______غر غشت)

**غرغښت** :- (غَ+رْ+غ+ خ/شْ+ت)-[اس-مذ-ج:ونه]- شورشر- شور زوږ.

**غرغښت** :- (غَ+رْ+غُ+ خ/شْ+ت)-[اس-مذ]- د جينکو (نجونو) د يوې لوبې نوم.

**غرغښت** :- (غُ+رْ+غُ+ خ/شْ+ت)-[اس-مذ-ج:ونه]- ګلګشت- په چمن کښې ګرځېدنه- غرمچ.

**غرغښتے** :- (غَ+رْ+غُ+ خ/شْ+تَے)-[اس-مذ-ج:تي]- غرغښت سره تعلق لرونکے- غرغښت ته منسوب.

**غرغښتي** :- (غَ+رْ+غُ+ خ/شْ+تي)-[اس-مع]- د غرغښت نيکهٔ اولاد- د پښتنو يوه لويه قبيله چې ډېر ښاخونه او څانګې لري.

**غرغښتي** :- (غَ+رْ+غ+ خ/شْ+تي)-[صف-س]- د مندتے (زېړالو) يو قسم.

**غرغنډه** :- (غَ+رْ+غَ+نْ+ډَ)-[اس-مو-ج:ډې]- لنبه- لمبه- د اور لويه شعله.

**غرغنډې** :- (غَ+رْ+غَ+نْ+ډې)- (۱) د ((غرغنډه)) جمع ده. (۲) د ((غرغنډه)) اضافي يا مجروري وغېره (مغير) شکل دے.

**غرغنډې پورته کېدل** :- (لوئې لوئې لمبې پورته کېدل.

**غرغور** :- (غَ+رْ+غُو+رْ)-(۱) شور زوږ- شورشار. (۲) د ټريفك شور- د موټرو لارو د تلو راتلو شور. (۳) تبېنته- د ګنو خلکو يو خوا بل خوا تېښتېدنه.

**غرفات** :- (غُ+رُ+فا+تْ)-[ع-اس-مو-ج]- د ((غُرفه)) جمع ده. و___غرفه.

**غرفه** :- (غُ+رْ+فَ)-[ع-اس-مو-ج:فې-ان]- (۱) کوټه- کمره. (۲) د بالاخانې برانډه- د بالاخانې مخکښې وتې چجه. بالاخانه.

څهٔ خو سر له غرفې هسك کړه وئې ګوره
لالــه زار دې په جوار کښې شګفته شهٔ (خوشحال)

(۳) کړکۍ- باري- دريچه. (۴) په تېتېر کښې يو بکس (د دوو يا زياتو کسانو د ناستې ځان له ځاے.

**غرفه** :- (غُ+رْ+فَ)-[ع-اس-مو-ج:غرفې]- چونګ- چې يو لاس پياله کړے شي او اوبهٔ وغېره پکښې واچولے شي. (شاذ)

مستسقيان دې په شيرين شراب سېراب کړه
د مغـــرور ورغـــومے غوځ، غرفه ئې تويه (حافظ)

**غرق** :- (غَ+رَ+ق)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- ډوب- په اوبو کښې ډوب شوے. غرق شوے- تباه- برباد. ډېر مشغول- ډوب.

**غرقاب** :- (غَ+رْ+قا+بْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- (۱) دا د غرق او آب ګډون دے- په اوبو کښې غرق شوے. ډوب. (۲) ډېرې ژورې- ژورې اوبهٔ. (۳) ګرداب- غولۍ. (۴) هغه زمکه چې په اوبو کښې ډوبه شوې وي.

**غرقول** :- (غَ+رْ+قَ+و+لْ)-[مص]- (۱) ډوبول- په اوبو کښې ننه يستل. (۲) تباه کول- بربادول. (۳) ډېر زيات تاوان رسول- ډېر زيات تاواني کول.

**غرقه** :- (غَ+رْ+قَ)-[عف تر-صف]- د ((غرق)) تانيث دے.

**غرقېدل** :- (غَ+رْ+قې+د+لْ)-[مص]- (۱) ډوبېدل. (۲) تباه کېدل- بربادېدل. (۳) ډېر نقصان موندل.

**غرکمانه** :- (غُ+رْ+کَ+ما+نَ)-[اس-مو-ج:نې]- د ليندې يو قسم- مطلق لينده.

وېره کـــــا لـــه غرکمانه
په اسمان چې مرغه ووزي (خوشحال)

**غرکنو** :- (غَ+رْ+کَ+نو)-[ق-اس-صف]- د يوې مشهورې سبزۍ نوم دے، چې پخولے شي. د تاندولي يا سُورګلي په شان وي.

**غرکے** :- (غُ+رْ+کَے)-[اس-صوت]- د غوي يا د سخوندر (ټنډ) اواز (د مستۍ په وخت کښې) ډرکا.

**غرکے کول** :- (د سخوندر(ټنډ) يا د غوي (د مستۍ په وخت) اواز کول- ډرکېدل.

**غرګو** :- (غُ+رْ+ګو)- د (غرګي) جمع اضافي يا مجروري وغېره (مغيره) شکل دے.

**سورے په غرګو ويشتل** :- (مجازاً ډېر بدي کېدل- ډېر زيات نفرت کول د چانه.

**غرغېچکو** :- (غَ+رْ+غې+چَ+کو)-[اس-مذ]- تور لرګے- سياه چوب.

**غرګے** :- (غَ+رْ+ګَے)-[اس-مذ-ج:ګي]- وړوکے غونډ کانړے (چې په لاس کښې اخستے او ګوزاربدے شي) غونډارے.

غرلېونے دے چرته ودې نۀ لي
لمن ئـــې ډوله د غرګو ډکه ده (غربابا)

**غرګے** :- (غَ+رْ+ګَے)-[اس-مذ-ج:ګي]- د غر تغصير- وړوکے غر.

**غرمبېدل** :- (غ+رَ+مْ+بې+د+لْ)-[مص]- و____ غرمبېدل.

**غرمچ** :- (غُ+رْ+مُ+چ)-[و____ غرغشت]

**غرمچ** :- (غَ+رْ+مُ+چ)-[اپ-ت]- (۱) په سپرلي کښې دګلونو په مېنځ کښې يو چکر. (۲) تور وانجه: توري داني دي. او نانوان ئې د بنۀ خوند دپاره د ډوډۍ په مخ شيندي.

**غرمکی** :- (غَ+رْ+مَ+کَ+ی)-[و_______ غرمه کی]

**غرمه** :- (غ+رْ+مَ)-[اس-مو-ج:مې]- د ورځې هغه وخت چې نمر (نور) د سر د پاسه راشي. د ورځې د نيمايي وخت.

**غرمه کی** :- (___+کَ+ی)-[اپ تر-اس-مو]- د څاښت اولنۍ برخه- نيم څاښت- کچه غرمه.

**ټکنده غرمه** :- (ټَ+کَ+نْ+دَ+___)-[و_______ ټکنه غرمه]

**ټکنه غرمه** :- (ټَ+کْ+رَ+نْ+___)-[اپ تر-اس-مو-ج:مې]- ټيک د غرمې وخت- ټيک هغه وخت چې نمر (نور) بالکل د سر د پاسه راشي.

**ټکنۍ غرمه** :- (ټَ+کَ+نَ+ی+___)-[و_______ ټکنه غرمه]

**داوړې غرمه** :- (دَ+أُو+ړې+___)-[اپ تر-اس-مو-ج:مې]- په اوړي کښې عام خلک د غرمې په وخت اوده وي- ځکه لارې کوڅې خالي وي- د اوړي غرمه د شپې بدتره وي. (متل)

**سره غرمه** :- (د غرمې هغه وخت چې نمر ډېر تېز وي. ټکنه غرمه- مجازاً سخت وخت.

دۀ چې تبغ د پيغمبرؐ د وړاندې واخست
په کافـــــــرو له هېبته سره غرمه د (خواجه محمد)

**غرمنی** :- (غَ+رْ+مَ+نَ+ی)-[اصف-مو]- غرمنۍ ډوډۍ- غرمنۍ مېلمستيا.

**غرمنے** :- (غَ+رْ+مَ+نَے)-[اس-صف-مذ-ج:نې]- (۱) د غرمې تعلق لرونکے- غرمې ته منسوب. (۲) د غرمې د وخت.

**غرمے** :- (غ+رْ+مې)- (۱) د ((غرمه)) جمع ده. (۲) د ((غرمه)) اضافي يا مجروري (مغيره) شکل دے.

**دغرمې پيدا** :- (___+پَې+دا)-[اپ تر-صف]- هغه (هلك) چې د غرمې په وخت سخته ګرمۍ کښې) پېدا شوے وي. مجازاً ډېر وران کارے- ډېر شيطان- ډېر شرارتي.

**دغرمې خوب** :- (هغه لږ شان خوب چې په اوړي کښې د غرمې په وخت کولے شي. قيلوله.

**دغرمې ډوډۍ** :- (و_____ غرمنۍ ډوډۍ)

**غرناطه** :- (غَ+رْ+نا+طَ)-[اس-مع]- د هسپانيې پخوانۍ دارالخلافه چې مسلمانانو پرې څۀ اته سوه کاله بادشاهي کړې ده. په دغه وخت کښې د دنيا د ټولونه زيات صفا ښکلے ښار ؤ.

**غرنجے** :- (غ+رَ+نْ+جَے)-[اس-مذ-ج:جي]- ورغومے- سېرلکے- ماستۀ بيزو وځټيل او خولۀ ئې د غرنجي ککړه کړه. (متل)

**غرند** :- (غَ+رْ+نْ+د)-[اصف-مذ-مو:ه]- غرېدونکے- هغه څوك چې زياتې، خو بېځايه خبرې کوي.

**غرنداز** :- (غ+رَ+نْ+دا+زْ)-[اصف-مذ-مو:ه]- و_____ غرند)

**غرنده** :- (غَ+ر+نْ+دَ)-[اس-مو]- د مرۍ نه ښکته- د غاړې غوټه- دمرۍ غوټه.

نوے سر به کلـــــه شمع ورتـــه نيسي
که د عشق په تېغ شي غوڅه دچا غرنده (حسېن)

**غرنده** :- (غَ+(رَ+ر+نْ+دَ)-[اس-مو-ج:دې]- د وريځو غرا- ګړګوړ.

**غرنده** :- (غُ+رُ+نْ+دَ)-[ق-صف-مو]- سختي- تنګسيا- تنګي- لاچاري- تنګسه.

**غرنده** :- (غُ+رُ+نْ+دَ)- د ((غرند)) تانيث دے. لکه غرنده وريځ.

**غرنده** :- (غُ+رْ+ر+نْ+دَ)-[ق-صف]- غُرغُرکوونکے- غړمبېدونکے.

**غرندے** :- (غ+رَ+نْ+دَے)-[اس-مذ-ج:دي]- د غاړې غوټه- د مرۍ غوټه.

**غرنزے** :- (غَ+رَ+نْ+زَے)-[اس-مذ-ج:زي]- د صنوبر ونه- چلغوزي ونه.

**غرنګ** :- (غ+رَ+نْ+ګ)-[اس-صوت]- د کوم فلزي (د دات نه جوړ شوي) څيز د راغوځېدلو اواز- ټنګ-کړنګ.

**غرنګ سره را پرېوتل** :- (د کوم فلزي څيز- د غرنګ يا ټنګ وغېره اواز سره ښکته را پرېوتل.

**غرنـــے** :- (غَ+رَ+نَ+ی)-[اس-مع]- د پاونده ؤ وړه شان قبيله ده. (په ډېره اسماعيل خان کښې ئې استوګنه ده).

**غرنۍ** :- (غَ+رَ+نَ+ی)-د ((غرنے)) تانيث دے.

**غرنے** :- (غَ+رَ+نَے)-[اس-مذ-ج:نې]- غر سره تعلق لرونکے- د غر- غريز.

**غروانۀ** :- (غَ+رْ+وا+نۀ+ۀ)-[(ق)-اس]- يو ډول غرني وانۀ دي.

**غروال** :- (غ+ر+و+ل) (اس صف) وګورئ غرنے

**غروب کول** :- (۱) ډوبېدل- غروب کېدل. (غروب کول عام نه استعمالېږي). (۲) مجازاً: وفات کېدل- مړ کېدل.

د څوکنـــــو ميا غروب وکه لکــــــه نمر د عصر
چې شاه ګدا ترې خوشبوۍ وړه عطار پاتې نۀ شۀ (حافظ)

**غروځے** :- (د غرونو ځاے- کوهسار- غرئيزه علاقه)

**غرور** :- (غُ+رو+رْ)-[ع-اس-مذ]- کبر- لويي- تکبر- مرغوړنه. ټاټ.

**غرور کول** :- (مص-تر)- کبر کول- لويي کول- تکبر کول- مرغوړنه کول- فخر کول.

**غرور ماتول** :- (کبرماتول- لويي ماتول- د لويۍ او غرور نه پرې يستل.

**غرور ماتېدل** :- (کبر ماتېدل- لويي يا تکبر نه پاتې کېدل.

**ملي غرور** :- (مِ+لْ+لي+___)-[ق- عپ تر-اس]- قومي غرور- قومي فخر-

فومي افتخار.

**غروړه** :- (غ+رُو+ړَ)-[اس-مو-ج:ړې]- د ځرمنې لاندې پرسوب- غونډاره- ګلټي- موړه- د ځرمنې د لاندې د غدودو پړسوب.

**غروړے** :- (غ+رو+ړے)-[اس-مذ-ج:ړي]- ګردم- يوه بيماري چې ډېر غم سره پيدا کېږي.

**غروړے** :- (غ+رُو+ړَے)-[اس-مذ-ج:ړي]- (۱) د ځرمنې لاندې پړسوب- غونډارے- ګلټي- موړې. (۲) بغض- کينه- دښمني.

**غروړي** :- (غ+رُو+ړي)-[و_____ غروړے]

**غروړي** :- (_____ غروړے غروړے)

**غروسم** :- (غ+ر+و+س+مْ)-[(ق)]- و_____ غروسمه.

**غروسمه** :- (غ+ر+و+س+مَ)-[ق]- غر او دشته- لوړه او ژوره- غر او هواره.

**غروښت** :- (غ+ر+وَ+خ/ش+ت)-[ق-اس-مذ]- يو غرئيز بوټے دے- چې عموماً د بلَوُلو دپاره پکارولے شي- يو خشاکي بوټے.

**غرول** :- (غ+رَ+وُ+لْ)-[مص]- (۱) په غرا کول- په شور کول. (۲) (لا) د خولې نه بې واره وباسل- بې واره بې واره وئيل- ګړبدل. (۳) شوك په خبرو کول- شوك په ډېرو خبرو مجبورول- ګړول. (۴) بې واره کنځل کول- زيا ړل- بد ورد وئيل. لکه: ښځه مې ورته وغرولې!

**غرول** :- (غ+رُ+وَ+لْ)-[مص مت-پ-ت]- د واده د مراسمو په وخت زوم په پالنګ يا تخت درول.

**غرومب** :- (غ+رُو+م+بْ)-[و_____ غړومب]

**غرونو** :- (غ+رُو+نو)- د ((غرونه)) اضافي يا مجروري وغيره (متغيره) شکل دے.

د تورو غرونو مې پناه کړه
جينۍ لالالا کوي حېران ئې کړمه (ټپه)

**غرونه** :- (غ+رُو+نَ)- د ((غر)) جمع ده.

**غرونه غرونه** :- (___+غ+رُو+نَ)-[اپ تر-صف]- د غرونو په شان- لکه د غرونو په شان لوے لوے- ډېر لوے.

لکه دُود چې غرونه غرونه سرګندېږي
تـار په تـار شي په يـوه نري شعال (رحمان بابا)

**غرونه** :- (غ+رَ+وُ+نَ)-[حمص]- د خولې نه په تېزۍ سره يا غصې سره مسلسل وينا کونه. بد ورد وئينه. کنځل کونه.

**غروونکے** :- (غ+رَ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- (۱) په تېزۍ سره يا په غصه کښې مسلسل وينا کونکے. (۲) بد ورد ويونکے- کنځل کوونکے.

**غروے** :- (غ+ر+وَے)-[اس-مذ-ج:وي]- تَلے- د لاس تلے- ورغوے.

**غرۀ** :- (غ+ر)-[اس-مذ]- د ((غر)) بدل شکل دے- عموماً اضافي يا مجروري حالت کښې استعمالېږي.

**تر غرۀ اړول** :- (۱) دغر د يوې غاړې نه بلې غاړې ته اړول. (۲) لرې بوتلل، يا رسول.

**دغرۀ په سر ختل** :- (۱) د غرڅوکې ته رسېدل- د غر څوکه سر کول. (۲) ډېر لوړ ځاے ته رسېدل- د دسترس نه په هورته کېدل.

**دغرۀ خلک** :- (___+خَ+لَ+قْ)-[اپ تر-اس-جم]- (۱) په غرونو کښې وسېدونکي خلک- ساده خلک.

**دغرۀ زېړ** :- (___+ز+ې+ړْ)-[اپ تر-اس-جم]- د غرۀ نرګس- نرګس شهلا.

**دغرۀ نه پناه کول** :- (د غر نه بل خواته اړول- ډېر لرې بوتلل- د دسترس نه ايستل.

**غره** :- (غ+رَ)-[اس-مو-ج:ړې]- کُنه- مقعد.

**غره** :- (غ+رَ)-[اس-مو-ج:ړې] (ق) (۱) د اتڼ شروع. (۲) د اتڼ په پېل کښې په لوړ اواز سره مخصوص رغونه دي. (پ ت)

**غره** :- (غ+رَ)-[ع-صف]- مغرور- متکبر- غاوره. لوبي کوونکے.

**غره کېدل** :- (مغروره کېدل- غاوره کېدل. فخر کول.

**غره توب** :- (کبر او فخر کول.

تل چې ارته لمن ته ځکوې په مزکه
غره توب لرې د مخ په خوبۍ ځکه (خوشحال)

**غـرّه** :- (غ+ر+رَ)-[اس-صوت]- تېز او مسلسل اواز- (لکه د ژرندې يا د کارخانې يا د موټر وغېره). عموماً- مکرر راځي.

**غرّه غرّه** :- (___+غ+ر+رَ)- (۱) په تېزۍ سره او مسلسل اواز. (۲) د مېچن يا د کارخانې د کومې شور کوونکے- پرزې تيزۍ سره ګرځېدنه. (۳) مجازاً: تيزې تيزې او مسلسلې خبرې.

**غـره** :- (غُ+ر+رَ)-[ع-اس-مو]- د سپوږمۍ د مياشتو اولنے تاريخ د اسلامي مياشتو اولنۍ ورځ.

**غرهار** :- (غ+ر+رَ+ها+رْ)-

**غرهـر** :- (غ+ر+رَ+هـَ+رْ)-[اس-صوت]- (۱) د غـر غـر اواز- مسلسل غُرغُر کېدل. (۲) د توپو د پرله پسې چلېدلو اواز- درزهار.

**غره بونه** :- (غ+رَ+بُو+نَ)-[و_____ غربين]

**غرّه هر** :- (غ+ر+رَ+هَ+رْ)-[اپ-اس-مذ]- د غر غر اواز- مجازاً شور زوږ.

په هره هر مشه غـــره د مرايـــــي شبخانو
که ئې د خولې د خفه کړي په ځير زوګ وخېژي (حافظ)

**غرۍ** :- (غ+رَ+ۍ)-[ق-اس-مو]- نرۍ دانې چې په سخته تبه کښې په بدن راوخيژي.

**غرے** :- (غ+رَے)-[اس-مذ-ج:ري]- (۱) د مرۍ غوټه. (۲) د غاړې زوړنده ځرمن.

**غرې** :- (غُ+ر+رې)-[اس-ج]- لوئې خبرې- لاپې- ډوزې.

**غرې کول** :- (پ-مص)- لوئې خبرې کول- لاپې ويشتل.

**غرياسے** :- (غَ+ر+يا+سَے)-[اس-مذ-ج:سي]- کاج- غورياشه- غوراشه غرېك- پلوانبه.

**غرېب** :- (غ+رې+بْ)-[اس-مذ]- ژړا چې په غاړه کښې ښتېږي. بې اوازه يا ډېره په ورو ژړا- غريو.

**غريب** :- (غ+ري+بْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو:ه]- (۱) عاجز- خوار- مفلس- نادار. (۲) مسافر- پرديسي- بې وطنه- اجنبي.

د دانا په خپل وطن کښې قدر نۀ وي
دُر هاله قدر پيدا کړ چې غريب شۀ (خوشحال)

(۳) عجيبه- عجيب (عموماً عجيب سره يو ځاے راځي)

**غريب ګوټے** :- (___+ګو+ټَے)- د غريب تصغير- وړوکے- غريب يا کم غريب.

**غريبانه** :- (غ+ري+با+نَ)-[عف تر-صف]- د غريبانو په شان- د نادارو په ځير- د عاجزو خلکو په انداز

**غريبـه** :- (غ+ري+بَ)-[عـپ تـر-ض-اس]- د ((غريـب)) تانيث دے. و___ غريب).

**غريبه** :- (غ+ري+بَ)-[ق-اس-مو]- يوه ونه ده، چې از غي نۀ لري- وړې وړې دانې او پاڼې کوي.

**ستونې له غريبه ډکېدل** :- (۱) ژړا په مرۍ کښې ننښتل- ژړا ورتلل خو اواز نۀ وتښکل. (۲) کنايه: سخت مايوس کېدل- نا اميده کېدل.

**غريبي** :- (غَ+رِي+بي)-[عف-تر-اس-مو] - عاجزي- خواري- مفلسي- ناداري.

**غريبي راتلل** :- (مص-تر] - خواري راتلل- ناداري راتلل- مفلس کېدل

**غريبي کول** :- (۱) د عاجزۍ او خوارۍ سره ژوند تېرول. (۲) خپل ځادر سره پښې غزول- په خپله عاجزۍ کښې ځان ساتل. (۳) خواري کول.

**غرېدل** :- (غُ+رې+دَ+لْ)-[مص] - (۱) غُرغُر کول- د غرغر اواز ايستل (۲) ځان سره په زوره زوره (په قهر کښې) خبرې کول. (۳) کنځل کول- بد ورد وئيل. (۴) د وريځو اواز کول. (۵) چې غرېږي اخر ورېږي. (متل)

**غريز** :- (غَ+رِي+ز)- صبر- زغم- تحمل- برداشت.

**غريز** :- (غَ+رِي+ز)-غَرني- د غرۀ- غريچي- غريځي- غروال- روهي.

**غريزه** :- (غَ+رِي+زَ)-(۱) فطرت- خټه- اصل. (۲) طبعي ميل- رحجان د ټاکلو چارو سرته ورسولو په لړ کښې (د ساه لرونکو) فطري استعداد. (پ ت)

**غريزي** :- (غَ+رِي+زِي)-[عف تر-صف]- اصل- طبعي- فطري- جبلي.

**غريـزي حرارت** :- (ـــ+حَ+را+رَ+تْ)-[عف تر-اس-مو] - د انسان د بدن هغه ګرمي چې کومه قدرتي او فطري وي.

**غريق** :- (غَ+رِي+قْ)-[ع-اس-فا-مف-ج:ان] - (۱) غرق شوے- ډوب شوے. (۲) غرق کېدونکے- ډوبېدونکے.

څۀ يو نيزه څۀ دوه څۀ تـــر دا زياتي
د غريق اوبۀ چې پاس واوړي ترسره (خوشحال)

**غري وري** :- (غَ+رِي+وَ+رِي)-[صف] - ژور ژور- خيرې خيرې- کندې کندې.

**غري وري کول** :- (په څۀ څيز کښې ډېرې کندې قتې يا سورې جوړول.

**غري وري کېدل** :- (په څۀ څيز کښې ډېر سورې يا قتې يا کندې جوړېدل.

**غريو** :- (غّ+رِي+وْ)-[ع-اس-صوت] - شور- شور زوږ- فرياد.

**غرېو** :- (غّ+رې+وّ)-[اس-مذ] - ژړا چې په غاړه کښې ننښتې وي. بې اوازه يا ډېره په ورو ژړا- غرېب.

چې ئې چا وته په شمار يا ئې بيان کړم
هونبره غرېومې له فراقه نۀ دے نغرے (خوشحال)

**غرېوژن** :- (ـــ+ژَ+نْ)-[و_____ غرېوناک]

**غرېوناک** :- (ـــ+نا+کْ)-[صف-مذ-مو:ه] - له غرېوه ډک- له ژړا ډک خو چې د ژړا اواز ئې نۀ ووزي- ډېر غمناک- له غمه او مايوسۍ نه ډک.

**غرېوه** :- (غّ+رې+وَ)-د «(غرېو)» يو مجروري وغېره (مغېره_ شکل.

**غـړ** :- (غَ+ړْ)-[اس-صـوت] - (۱) قـے کـول اواز. (۲) غـړ- د نوسـتلو غـړ د مـائع څيزونو د توېدلو اواز.

**غړ کول** :- (د غړ اواز سره قے کول- لکه: د وينې يو غړ کول.

**غړ وهل** :- (مص-تر)- قے کول (ناڅاپه)- (ناڅاپه) د يو غړ اواز سره قے کول.

**غړ** :- (غ+ړْ)- د «(غاړه)» مخفف دے- نورو الفاظو سره د سابقې په طور راځي.

**غړ ځونډے** :- (ـــ+ځُو+نْ+ډَ+ے)-[پ تر-اس-مذ-ج:ډي] - د اس په غاړه کښې د اچولو ښکلې جوړه شوې پټه- د اس غاړکۍ.

**غړ** :- (غَ+ړْ)-[اس-مذ-ج:ان] - غل- شوکمار- تاړ.

**غړاسيے** :- (غِ+را+سْ+يے)-[ق-اس-مذ] - هغه لوړ ځاے کوم چې کوچيان د څيزونو د کېښودو دپاره جوړوي.

**غړاست** :- (غَ+را+سْ+تْ)-[اس-مذ-ج:ونه] - ګل مېخ- هغه مېخ چې سر ئې غټ او د ګل په شان وي- په دروازو باندې ښکلا دپاره لګولے شي-

ګلماخ.

**غړاسکے** :- (غّ+را+س+کَے)-[ق-اس-مذ-ج:کي] - شاه تير- شهتير.

**غړاسکے** :- (غّ+را+سْ+کَے)- د «(غړاسے)» تصغير دے. و___ غړاسے.

**غړاسے** :- (غّ+را+سَے)-[اس-مذ-ج:سي] - هغه ډېـه يا دونکاچه چې په کلو کښې د کور په ګوټ کښې د لوښو د کېښودو دپاره جوړولے شي.

**غړاشه** :- (غَ+را+شَ)-[اس-مو-ج:شې] - غرياسې- کاج.

**غړاندو** :- (غَ+را+نْ+دُو)-[صف-مذ] - غړانګور= لوئې غړانګې والـه ورډې مرۍ واله.

**غړانګاو** :- (غَ+را+نْ+ګا+وْ)-[ق-اس-مذ] - يو قسم بوټے دے چې په سخته زمکه کښې پيدا کېږي- او د اوښانو خوراك دے.

**غړانګو** :- (غَ+را+نْ+ګو)-[صف-مذ] - (۱) بد غږے- بد اوازے- هغه سړے چې په اواز سره ئې څۀ څيز يا کار د نظره کېږي.

(۲) غړانګور.

**غړانګه** :- (غَ+را+نْ+ګَ)-[اس-مو-ج:ګې] - (۱) مرۍ- ګردن. (۲) ورډه او اوچته چغـه. (۳) فريـاد- شـور غوغـا. (۴) د اوښ اواز. (۵) سـانده د ويرچغـه. (عموماً د جمع په شکل کښې استعمالېږي)

**غړانګۍ** :- (غَ+را+نْ+ګَ+ۍ)-[صف-مو] - (۱) د «(غړانګې)» تانيث دے.

(۲) صراحي.

**غړانګي** :- (غَ+را+نْ+ګي)-[صف-مذ-مو:غړانګې] - (۱) بد اوازے- بدغږے- غړانګو. (۲) ورډې غړانګې واله- لوئې مرۍ واله.

**غړانګې** :- (غَ+را+نْ+ګې)-(۱) د «(غړانګه)» جمع ده. (۲) د «(غړانګه)» اضافي او مجروري وغېره (مغېره) شکل دے.

**غړانګې وهل** :- (۱) لوئې لوئې چغې وهل- بغارې وهل- فرياد کول.

(۲) د اوښ په زوره زوره برړېدل. (۳) په مړي باندې ساندې وئيل- په مړي باندې په زوره زوره وير کول.

**غړب** :- (غّ+ړَ+پْ)-[اس-مذ] - شان شوکت.

**غـړب** :- (غّ+ړَ+بْ)-[اس-صوت] - (۱) د يو غـټ ګـوټ د تېرولـو اواز. (۲) د يـو شي و لوېدلو او وهل کېدلو اواز.

**غړب غړب** :- (ـــ+غّ+ړَ+بْ)-(۱) غټ غټ ګوټونه. (۲) د غټو غټو ګوټونو اواز.

**غړب غړب ځښل** :- (په غټو غټو ګوټونو څۀ څيز ځښـکل يا په ګوټونو غـړب غړب اواز سره ځښکل.

**غړپ** :- (غّ+ړَ+پْ)-[اس-صوت] - (۱) د سپي د اوبو ځښکلو اواز.

(۲) د نمرۍ د تېرولو اواز.

**په غړپه غړپ** :- (پَ+غَ+ړَ+پَ ـــ)- غړپ د خوراك اواز ته وائي. يعني په غړپ غړپ (خوړل) زر زر (خوړل) لکه: خوړل دې په غړپه غړپ وهل دې په ډبه ډب.

**ډوډۍ غړپ** :- (ډو+ډۍ+ـــ)- (۱) په غړپ غړپ ډوډۍ خوړونکے.

(۲) مجازاً: مفتې ډوډۍ خوړونکے. مفت خور.

**غړپ** :- (غّ+ړُ+پْ)-[اس-مذ] - (۱) غټ ګوټ- ګوټ. (۲) د غټ ګوټ د تېرولو اواز. (۳) د نمرۍ (نوړۍ) د تېرولو اواز.

**غړپ غړپ** :- (۱) غټ غټ ګوټونه (د اوبو وغېره). (۲) د غټو غټو ګوټونو د تېرولو اواز. (۳) د نمرۍ د تېرولو اواز

**په غړپ غړپ ځښل** :- (۱) په غټو غټو ګوټونو ځښل. (۲) د غړپ غړپ اواز سره ځښل.

**په غړپ غړپ خوړل** :- (زر زر خوړل- زر زر نمړی یا نوړی د مری نه ښکته کول.

**غړپړ** :- (غُ+ړ+پُ+ړ)-[اس-مذ]- د قهر خبري.

هوښیار به خپله درته ځان پړ کا
نادان درځي په قاضي غړپړ کا (خوشحال)

**غړپل** :- (غَ+ړ+پِ+لْ)-[مص]- په غړپ غړپ ښکل. په غړپ غړپ د مری نه ښکته کول- (د اوبو ګوټ یا د نمړی خوراك).

**غړپول** :- (غّ+ړ+پَ+ؤ+لْ)-[مص]- (۱) په ګوټ ګوټ څښل- په یو یو ګوټ څښل- غورپول. (۲) لواړ لواړ یا زر زر خوراك کول. زر زر د مری نه ور ښکته کول.

**غړپونه** :- (غّ+ړ+پَ+ؤ+نَ)-[حمص]- (۱) په غړپ غړپ (ګوټ ګوټ) څښنه. (۲) زر زر خوراك د مری نه ورښکته کونه.

**غړپوونکے** :- (غّ+ړَ+پَ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- (۱) په غړپ غړپ څښونکے- په ګوټ ګوټ څښونکے. (۲) زر زر د غړپ غړپ اواز سره څښونکے. (۳) لواړ لواړ او زر زر خوړونکے. زر زر د مری نه ښکته کوونکے.

**غړپېدل** :- (غّ+ړَ+پې+د+لْ)-(۱) په ګوټ ګوټ سره څښلے کېدل. (۲) زر زر خوړلے کېدل- زر زر مری نه ورښکته کېدل.

**غړت** :- (غّ+ړَ+تْ)-[اس-صوت]- د نمړی (نوړی-مړی) د مری نه د ښکته کېدو اواز- د نوړی د تېرېدلو اواز.

**غړچ** :- (غّ+ړ+چْ)-[اس-مذ]- (۱) د نمړی د مری نه ښکته کونه- تېرونه- (۲) لواړ تېرونه.

**غړچ کول** :- (و____ غړچول)

**غړچول** :- (غّ+ړ+چَ+ؤ+لْ)-[مص]- لواړ تېرول- د غړچ اواز سره د کومي نه ښکته کول.

**غړچول** :- (غّ+ړ+چَ+ؤ+لْ)-[مص]- کړچول- زلزلې سره د چت د تیرونو او لهړونو د غړچ غړچ یا کړچ کړچ اواز ویستل.

**غړچے** :- (غّ+ړ+چَے)-[اس-صوت]- د نمړی (نوړی) پرله پسې د مری نه د ښکته کېدو اواز.

**غړچے** :- (غّ+ړ+چے)-[اس-صوت]- (۱) د زلزلې په وخت د چت د لهړو او تیرونو د کړچېدلو اواز. کړچے. (۲) د کټ په خوزېدلو سره د بازوګانو اواز- کړچهار- کړچار.

**غړچېدل** :- (غّ+ړ+چې+دِ+لْ)-[مص]- (۱) د نمړی (نوړی) د مری نه ښکته کېدل. (۲) لواړ تېرېدل. (۳) کړچېدل- زلزلې سره د چت د لهړو او تیرونو اواز کول- په خوزېدو سره د کټ اواز.

**غړڅکے** :- (غّ+ړ+سْ+کَے)-[ق-اس-صوت]- د آسمان د ګړېدو آواز- د وریځو اواز- د وریځو ګړز- ثنا.

**غړڅکے** :- (غّ+ړ+سْ+کَے)-[اس-مذ-ج:کي]- (۱) ټوټه- ټکړه. (۲) د وریځې یوه ټوټه. (۳) خاشاك- توتنکے- توتنے.

**غړدے** :- (غ+ړْ+دَے)-[صف-اس-ج:دي]- غښتلے شوے- غړلے شوے.

**غړز** :- (غّ+ړَ+زْ)-[اس-صوت]- (۱) د څۀ درونډ څیز د راغورځېدلو اواز- غرز- درز. (۲) د وریځو ګړز.

**غړزا** :- (غّ+ړَ+زْ+زا)-[اس-صوت]- (۱) د څیزونو د پرله پسې غورزېدلو اواز- (۲) دوریځو مسلسل اواز- ګړزا.

**غړزار** :- (غّ+ړَ+زا+رْ)-[اس-مذ]- د غړزهار بدل ښکل دے.

**غړزها** :- (غّ+ړَ+زَ+ها)-[اس-مذ]- و____ غړزا.

**غړزهر** :- (غ+ړَ+زْ+زَ+هَ+رْ)-[اس-مذ]- و____ غړزار

**غړسپے** :- (غّ+ړ+سْ+پَے)-[اس-مذ-ج:ي]- په دوکان کښې د شکرو د کښېښودلو ځاے- منه- منا.

**غړشکه**:- (غُ+ړَ+شْ+کَ) (اس-مو-ج:ې) تېزه لمبه- تېز اور

**غړغړ** :- (غَ+ړْ+غَ+ړْ)-[اس-مذ]- و____ غرغر.

**غړغرانده** :- (غَ+ړْ+غَ+را+نْ+دَ)-[ب-صف]- ډېرې خبرې کوونکے- ټرټرے (د ژبې صفت دے).

**غړغره** :- (غَ+ړَ+غَ+ړَ)-[اس-مو-ج:غړغرې]- چغه- نعره سوره.

**غړه غړه کول** :- (۱) ورچغه کول- چغه ایستل. لکه: په دښمن ئې غړغړه وکړه. هغه وارخطا که او مړ ئې کړ. (۲) په دار خېژول- پانسي کول- لکه: فلانے ئې پرون غړغړه کړے کړو.

**غړه غړه** :- (غ+ړْ+غُ+ړَ)-[د غړ غړ په شان اواز- لکه د بوتل وغېره نه چې اوبۀ د تویولو په وخت پېدا کېږي.

عاشقان واړه د غم په دریاب ډوب وي
غــړغــړه کــه همېشه لکه صراح (خواجه محمد)

**غړغــړې** :- (غَ+ړْ+غَ+ړې)- (۱) د غړغړه جمع ده. (۲) د ((غړغړه)) اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل دے.

**غړغړې ګډېدل** :- (شور پورته کېدل- چغې سورې پورته کېدل. لکه: د ګولۀ باری نه پس په اسانۍ چغې د غړغړې ګډې شوې.

**غړغړې وهل** :- (چغې وهل- نغرې سورې وهل- لکه: فلانې ډېرې رامبوړې او غړغړې وهلې.

**غړغمبک** :- (غَ+ړْ+غُ+مْ+بَ+كْ)-[اس-مذ-ج:ان]- ډانډس- ډانډت مار- ننداپ.

**غړک** :- (غَ+ړَ+كْ)-[اس-مذ]- و____ غړکه.

**غړکه** :- (غَ+ړْ+كَ)-[اس-مو-ج:کې]- هغه مشك چې ځینې قبائل په کښې ماستۀ شاربي- د شوملو د شاربلو مشك.

چې سړې شوملې څښم په وخت د اوړي
ادشاهــي ده د اورنګ زمـــا غړکه (خ خ خ)

**غړکه شاربل / غړکه شربل** :- (په غړکه کښې شوملې یا ماستۀ شاربل. د غړکې په خوځوولو د شوملو نه کُچ را ایستل.

**غړل** :- (غَ+ړْ+لْ)-[مص]- غښتل- تاو ورکولو سره پړے و بړه جوړول (دا دواړه مصدرونه ((جوړې)) دي. ځینې مصدرونه دیو نه جوړېږي ځینې د بل نه).

**غړم** :- (غّ+ړَ+مْ)-[اس-صوت]- (۱) د توپې اواز- غړمب. (۲) د زمری اواز.

**غړمب** :- (غّ+ړَ+مْ+ب)-[اس-صوت]- (۱) د زمري اواز. (۲) د توپې اواز.

**غړمب** :- (غّ+ړ+مُ+بْ)-[اس-صوت-مذ]- و____ غړومب.

**غړمبا** :- (غّ+ړَ+مْ+با)-[اس-صوت]- (۱) د غړمب غړومب اواز. (۲) د زمري اواز. (۳) د توپو اواز- درزا.

**غړمبار** :- (غّ+ړَ+مْ+با+رْ)-[اس-صوت]- د غړمب غړمب مسلسل اواز

**غړمبارے** :- (غّ+ړَ+مْ+با+رَے)-[اس-صوت]- و____ غړمبار.

**غړمبو** :- (غّ+ړ+مْ+بو)-[ق-اس-مو]- په سیند یا والۀ کښې داوبو د شیندنې لوبه.

**غړمبو کول** :- (په سیند- نهر یا واله کښې اوبو سره لوبې کول- او په یوبل

نوستل.

**غړمبول** :- (غّ+ړ+َم+ۇ+لْ)-[مص-مت]- زمرے وغېره په غړمبېدلو مجبورول- غړومبول.

**غړمبونه** :- (غّ+ړ+َمْ+بَ+و+ُنَ)-[حمص]- (۱) زمرے په غړمبېدلو مجبورونه. (په چېړلو سره) زمرے وغېره په غړمبا کونه. (۲) د توپو چلونه- چې د غړمبا اواز يا اوازونه ترې پيدا شي.

**غړمبوونکے** :- (غّ+ړ+َمْ+بَ+وُو+نْ+کَے)-[په غړمبلو مجبورونکے- زمرے وغېره- (په چېړلو سره) په غړمب کوونکے. (۲) د توپې يا د توپو چلوونکے.

**غړمبهار** :- (غّ+ړ+َم+ْبَ+ها+رْ)-[اس-صوت]- و_____ غړمبار.

**غړمبے** :- (غّ+ړ+َم+ْبَے)-[اس-مذ-ج:بې]- (۱) د زمري اواز. غړمبا. (۲) د توپې اواز- ډزار.

**غړمبېدل** :- (غّ+ړ+َم+ْبې+د+لْ)-[مص لا]- (۱) د غړمب غړمب اواز کول- د زمري اواز کول.

په غړمبېدلو باندې راغے

بېلتون زمرے دے يار مې غېږ کښې ماتوينه (ټپه)

(۲) د توپې يا د توپو چلېدل- درزېدل. (۳) په غصه او قهر کښې په زوره زوره خبرې کول يا بد و رد وئيل. (۴) د اسمان ګړېدل- د وريځو ګړېدل. ((چې ډېر غړمبېږي نو نۀ وربږي)) (متل)

**غړمبېدنه** :- (غّ+ړ+َم+ْبې+د+نَ)-[حمص]- (۱) د غړمب غړمب اواز وښکنه. (۲) د زمري اواز اېستنه. (۳) د توپو چلېدنه.

**غړمبېدونکے** :- (غّ+ړ+َم+ْبې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- د غړمب غړمب اواز وښکونکے.

**غړن** :- (غَ+ړ+نْ)-[و_______ غړند]

**غړنب** :- (غّ+ړ+َم+ْب)-[و_____ غړمب]

**غړنب وهل** :- (د زمري اواز کول- (خصوصاً په قهر يا د حملې په وخت).

مزرے چې ډېر ګورې ترس ترې کم شي

چې درته غړمب وهي په ځان دې غم شي (خ خ خ)

**غړنبول** :- (غّ+ړ+َم+ْبَ+ۇ+لْ)-[و_______ غړمبول]

**غړنبېدل** :- (غّ+ړ+َم+ْبې+د+لْ)-[و_______ غړمبېدل]

**غړنجار** :- (غّ+ړ+َنْ+جَ+ها+رْ)-[اس-صوت]- ګړنجار.

**غړنځے** :- (غُ+ړ+َنْ+زَے)-[اس-مذ-ج:ځي]- د صنوبر د ونو يو قسم دے. غونځے- د صنوبر ونه. د چلغوزو ونه.

**غړند** :- (غُ+ړ+نْ+د)-[صف]- (۱) رغړېدونکے- تولند. (۲) شوياند- ښوېدونکے. (۳) ګټ- ګوښه- غاړه. (۴) جے- کناره.

**غړند تېرېدونکے** :- (___+تې+رې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- ښوياند تېرېدونکے- سهل- انګاري کوونکے.

**غړند** :- (غَ+ړ+نْ+د)-[صف-مذ-مو:ه]- (۱) مراوے- پژمرده. (۲) سست. (۳) کمزورے.

**غړندتوب** :- (___+تو+بْ)-(۱) مراوے توب- پژمردګي. (۲) کمزورتيا- سستي- کاهلي.

**غړندتيا** :- (___+تّ+يا)-[و_______ غړندتوب]

**غړندتيا کول** :- (مص تر)-مراوے کول- پژمرده کول.

**غړندول** :- (غُ+ړ+َنْ+دَ+ۇ+لْ)-[مص]- مراوے کول- پژمرده کول- (۲) سستول- کاهل کول- (۳) کمزورے کول. (۴) بې پروا کول.

**غړندونه** :- (غَ+ړ+َنْ+د+َۇ+نَ)-[حمص]- (۱) مراوے کونه- پرمرده کونه- (۲) سست کونه. (۳) کمزورے کونه. (۴) بې پروا کونه.

**غړندونکے** :- (غَ+ړ+َنْ+دَ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-ج:کي]- (۱) مراوے کوونکے- پژمرده کوونکے. (۲) سستونکے. (۳) کمزورے کوونکے. (۴) بې پروا کوونکے.

**غړنده** :- (غَ+ړ+نْ+دَ)-[صف-مو-ج:دې]- يو څيز چې په يو ځاے کلک او محکم نۀ وي- ښويه- کړه پنده.

**غړندے** :- (غَ+ړ+َنْ+دَے)-[اس-صف-مذ-ج:دي]- نظرباز- هغه سړے چې بد نظر ئې لګي- بد نظرے.

**غړندېدل** :- (غَ+ړ+َنْ+دې+د+لْ)-[مص]- (۱) مراوے کېدل. پژمرده کېدل. (۲) سستېدل- کاهل کېدل. (۳) کمزورے کېدل. (۴) بې پروا کېدل.

**غړندېدنګ** :- (غَ+ړ+َنْ+دې+نْ+ګْ)-[اق-حمص]- و______غړندېدنه.

**غړندېدنه** :- (غَ+ړ+َنْ+دې+د+ن)-[حمص]- (۱) مراوے کېدنه. سستېدنه. (۲) کمزورے کېدنه. لاپروا کېدنه.

**غړندېدونکے** :- (غَ+ړ+َنْ+دې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- مراوے کېدونکے. سستېدونکے- کمزورے کېدونکے.

**غړندېدۀ** :- (غَ+ړ+َنْ+دې+د)-[و_____ غړندېدنه]

**غړنزے** :- (غّ+ړ+َنْ+زَے)-[اس-مذ-ج:زي]- د صنوبر ونه- د چلغوزوي ونه- څنغوځے- غړنځے.

**غړنګ** :- (غَ+ړ+َنْ+ګْ)-[حمص]- غړنه- تاؤنه- غښتنه.

**غړنګ** :- (غّ+ړ+َنْ+ګْ)-[اس-صوت]- په غړکه کښې د مستو د شاربلو اواز.

**غړنګا** :- (غّ+ړ+َنْ+ګا)-[اس-صوت-مذ]- غړنګهار- په غړکه کښې د شوملو شاربلو مسلسل اواز

**غړنګه** :- (غَ+ړ+َنْ+ګَ)- (۱) و_____ غړانګه. (۲) چغه- نعره- فرياد. (۳) د اوښ اواز- بړېر. (۴) سانده- ګفتار- په مړي باندې سانده –د وير چغه. (عموماً د جمعې په شکل کښې استعمالېږي.)

**غړنګي** :- (غّ+ړ+َنْ+ګَ+ی)-[ق-اس-مو]- هغه قدرتي غوښن چناسې چې د ګډو بزو په مرۍ کښې اوېزاني وي. جنجڼې- (جدراني)

**غړنګې** :- (غّ+ړ+َنْ+ګې)- (۱) د ((غړنګه)) جمع ده. (۲) د ((غړنګه)) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل.

**غړنګې وهل** :- (شور زوږ کول- چغې وهل.

رانې ووهي غړنګې

لور په لور هورې دلې (خ خ خ)

**غړنه** :- (غَ+ړ+َنَ)-[حمص]- تاوونه- غښتنه- غړنګ.

**سر غړنه** :- (س+َرْ+___)- غاړه غړونه- نۀ مننه- انکار- سرکشي- باغي توب.

**غړنه** :- (غَ+ړ+َنَ)-[و_______ غړونه]

**غړواندے** :- (غّ+ړ+َوا+نّ+دَے)-[اس-مذ-ج:دي]-غړوندے- د څاروو د مرۍ پټيې يا پړے- قلاره.

**غړوب** :- (غّ+ړ+ُو+بْ)

**غړوپ** :- (لّ+ړُ+و+پْ)-[اس-صوت]- په اوبو کښې تيزۍ سره د وړو ډوبېدو اواز- د غوپه کېدو اواز- غړوم.

**غړوپ** :- (غّ+ړ+ُ+پْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- (۱) ګوټ. (۲) د ګوټ دتېرلو اواز.

**غړوپ او سروپ** :- (___+اَ+وْ+س+رو+پ)-[و_____ غړپ او سرپ]

**غړوپ غړوپ** :- (___+غّ+ړُ+و+پْ) [و_____ غړپ غړپ]

**غړوپ غړوپ ښنبل** :- (و ــــــ غړپ غړپ ښنبل)

**غړوپ کول** :- (گوټ کول

په زړهٔ مې ليك د اشنا نوم دے

د اوبو غړوپ کولے نشم وران به شينه (ټپه)

**غړوپل** :- (غ+ړُو+پَ+لْ)-[و ـــــــ غړپل]

**غړوپول** :- (غ+ړُو+پَ+وَ+لْ)-[و ـــــ غړپول]

**غړوپېدل** :- (غ+ړُو+پې+د+لْ)-[و ـــــ غړپېدل]

**غړوسکه** :- (غ+ړو+س+کَ)-[و ـــــــ غړوسکے]

**غړوسکے** :- (غ+ړو+سّ+کَے)-[اس-مذ-ج:کي]- (۱) گورلُوگے. (۲) تريخ او بدبويه لوگے- (ظفر)

**غړوسکے** :- (غ+ړو+س+کَے)-[اس-مذ-ج:کي]- يو قسم لومه ده. چې د اس د لکۍ د وېښتو نه جوړولې شي- د وېښتو نه جوړ دام.

**غړوشتې** :- (غ+ړ+وَ+ش+تَې)- د «غړوکے» تانيث او د غړکه تصغير- د شوملو د شاربلو وړوکے مشك.

**غړوکے** :- (غ+رُو+کَے)-[اس-مذ-ج:کي]- د «غړکه» تصغير دے. وړه غړکه.

**غـړول** :- (غ+رَ+ؤ+لْ)-[امـص]- (۱) د سترگو پرانستـل- وازول. (۲) د سترگو کاتې اړول را اړول. (۳) کمزورے تنفس (ساه اخستنه). لکه: ساه پکښې غړېږي. (۴) گرځول- تاوول. لکه: د حکم نه مخ غړول.

**سترگې غـړول** :- (س+تَ+رْ+گې+ـــ)-[امص تر]- (۱) سترگې پرانستـل. (۲) غور او فکر کول- حال معلومول.

**غړول** :- (غ+ړ+وَ+لْ)-[امص]- چورلول- تاوؤل- د يو خاص محور نه چاپېره يا په يوه خاصه احاطه ښې چورلول.

**غړولے** :- (غ+ړ+ؤ+لَے)-[امف-مذ-ج:لي]- چورلولے- تاؤکړے.

**غړوم** :- (غ+ړُو+مْ)-[و ـــــــ غړومب]

**غـړوم غـړوم** :- (ـــ+غ+ړ+مْ)-[اس-صوت]- (۱) د زمري غړمبا. (۲) د توپو د چلېدو اواز

**غړومب** :- (غ+ړُو+مْ+ب)-[اس-صوت]- (۱) د توپې ډوب اواز. (۲) په کوهي يا داسې ژور ځاے کښې د څهٔ درونډ څيز د غورځېدلو اواز. (۳) د زمري اواز- غړمب. (د غړمب په مقابله کښې د غړومب اواز ډوب او درونډ دے)

**غړومب وهل** :- (۱) غړمب وهل- د زمري اواز کول (خصوصاً د غصې يا د حملې په وخت کښې) (۲) حمله کول.

**غړومبنه** :- (غ+ړُو+مْ+بَ+لْ)-[امص]- د زمري په غصه کښې اواز کول غړومب وهل.

**غړومبنه** :- (غ+ړُو+مْ+ب+نَ)-[احمص]- و ـــــــ غړومبل)

**غړومبول** :- (غ+ړُو+مْ+بَ+ؤ+لْ)- په غړمبېدلو مجبورول- په غړمب راوستل.

**غړومبولے** :- (غ+ړُو+مْ+بَ+ؤ+لـے)-[اس-مـف-مـذ-ج:لـي]- پـه غړمب راوستلے شوے.

**غړومبونه** :- (غ+ړُو+مْ+بَ+ؤ+نَ)-[احمص]- په غړمبا راوستنه- په غړمبا کونه.

**غړومبوونکے** :- (غ+ړُو+مْ+بَ+و+نْ+کَے)-[اس-فا-ع-مذ-ج:کي]- په غړمبا راوستونکے. په غړمبا مجبوره کوونکے.

**غړومبهار** :- (غ+ړُو+مْ+بَ+ها+رْ)-[اس-صوت]- د غړمب غړمب مسلسل اواز.

**غړومبے** :- (غ+ړُو+مْ+بَے)-[اس-مذ-ج:بي]- (۱) غولۍ- څرخاوو- زغومے- (۲) گرداب- زخم.

**غړومبے** :- (غ+ړُو+مْ+بَے)-[اس-مذ-ج:بي]- د زمري يا د توپې مسلسل اواز- غړمبا- غړمبهار.

**غړومبېدل** :- (غ+ړُو+مْ+بې+دَ+لْ)-[امص]- (۱) غړمب غړمب کول- د زمري اواز کول- (۲) د توپې يا د توپو پرله پسې چلېدل.

**غړومبېدنگ** :- (غ+ړُو+مْ+بې+د+نْ+گْ)-[اق-حمص]- و ـــ غړومبېدنه.

**غړومبېدنه** :- (غ+ړُو+مْ+بې+د+نَ)-[احمص]- (۱) غړمب غړمب کونه- د زمري اواز کونه- غړمبېدنه. (۲) د توپې يا د توپو پرله پسې درزار.

**غړومبېدونکے** :- (غ+ړُو+مْ+بې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- (۱) غړمب غړمب کوونکے- غړمبېدونکے- اواز کوونکے زمرے. (۲) غړمبا کوونکې توپې.

**غړومبېده** :- (غ+ړُو+مْ+بې+د)-[احمص]- و ـــــــ غړومبېدنه.

**غړوندے** :- (غ+ړُو+نْ+دَے)-[اس-مذ-ج:دي]- د بوتل مرۍ.

**غړوندے** :- (غ+ړ+و+نْ+دَے)-[اس-مذ-ج:دي](۱) د ښاروي د مرۍ پړے يا پټے.

چې وحشي مجنون ئې ښهر لره راوست

د ليلى د زلفـــو هسې غـــړوندے د (رحمان بابا)

(۲) کولنډه- کولندے- د سپي د غاړې پټه.(۳) د سکون علامت- جزم. (ـْ)

**غړوندے وراچول** :- (د ښاروي په مرۍ کښې پړے يا پټے اچول. مجازاً په قابو کښې راوستل.

**غړوندے ورکول** :- (د کوم حرف دپاره د غړوندي (سکون) علامت ليکل.

**غړونکے** :- (غ+ړُو+نْ+کَے)-[افا-ع-مذ-ج:کي]- تاؤ ورکونکے.

**غړونگ** :- (غ+ړ+ؤ+نْ+گْ)-[اق-حمص]- و ـــ غړونه.

**غړونـه** :- (غ+ړ+وَ+نَ)-[احمص]- (۱) پرانسته- د سترگو وازونه(۲) گرځونه- تاوونه.

**غړونے** :- (غ+ړُو+نَے)-[و ـــــــ غړوونے]

**غړوونکے** :- (غ+ړ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- (۱) پرانستونکے- د سترگو وازونکے. (۲) گرځونکے- تاوونکے.

**غړونے** :- (غ+ړ+وُو+نَے)-[د لوښو د وينځلو اوبهٔ- د کنگالولو اوبهٔ- غړونے.

**غړۍ** :- (غ+ړ+ۍ)-[اس-مو]- (۱) د لوښي (لکه منگے- صراحي وغېره د خولې نه لاندينۍ حصه- کومه چې د مرۍ هسې وي- او عموماً د نيولو دپاره پکارولے شي. (۲) مرۍ- غړانگه.

ښۀ د خيال پگړۍ گلگون مخ سيمين غړۍ

خاورې د بيابان شوې زلمي جونه بې ارزۍ (حافظ)

**دم په غړۍ راتلل** :- (ساه مرۍ ته راتلل- مرگ ته نژدې کېدل.

له نا اهلو اميد مه کړه د نمړۍ

که دې دم له فاقې راشي په غړۍ (سعيد)

**غړے** :- (غ+ړَے)-[اس-مذ-ج:ړي]- (۱) د يو څو تهو واله غوړه ډوډۍ- پراټه. (۲) د غوښې پلوواله حصه يا ټکړه- کبوړے.(۳) اندام- عضو- د بدن يوه حصه.

د طلب غړي مې لاندې شول تر غرونو

هغـــه ښېل ياران په کومو غرو غواړم (خ خ خ)

(۴) رکن- په يو ټولې کښې شامل سړے- ممبر. (۵) اړولے شوے پټې کښې هغه د کب په شان زمکه کومه چې يوې نه پاتې شوې وي. پاره.

**غړے جوړېدل** :- (د کوم ټولي وغېره رکن يا ممبر جوړېدل.

**غړي** :- (غ+ړي)-(۱) د «غړے» جمع ده.

د مطلب غړي مې لاندې شول تر غرونو
هغه ښېل ياران په کومو غرونو غواړم (خ خ خ)

(۲) د ((غړے)) اضافي او مجروري وغېره (بدل) شکل دے.

**غړي تنبتېدل** :- (و ـــــــ غړي ښوئېدل)

**غړي ښوئېدل** :- (د پښو کار پرېښودل. لکه: د فلاني غړي وښوئېدۀ. کنايه: ډېرې سختۍ ويرې اخستل چې د ويرې نه حرکت هم نۀ شي کولے.

**غړي غړي پر بوتل** :- (مجازاً: ښېخې آماده او تيار ((بودل)) په خوشحالۍ يو کار ته آماده ((بودل)) لکه: فلانے غړي غړي پروت دے کـه ئې ځان سره شريك کړے.

**غړي غړي ورغېدل** :- (و ـــــ غړي غړي پرېوتل).

**دمقصد غړي ګټل** :- (خپل مقصد حاصلول.
خوا په شاکه درته اوړي چاپلوسي کا
در څخه ګټي همــه د مقصد غړي (سعيد)

**غړياکه** :- (غَ+ړ+يا+کَ-[و ـــــــ غړنګۍ]

**غړياکے** :- (غ+ړ+يا+کے-[و ـــــــ غړياکه]

**غړيت** :- (غّ+رِي+تْ-[اس-مذ] - فريب- دوکه- ټګي- چالبازي.

**غړيتاو** :- (غَ+رِي+تا+وْ-[اس-مذ] - د اس زغلول او (پـه زغـل کښـې) ګـردش ورکول.

**غړېدل** :- (غَ+رِي+دَ+لْ-[مص] - (۱) څرخېدل- چوکه کېدل.
زۀ چــې تللي يادوم زړۀ مــې مړېږي
په ګوګل کښې مې د غم چرې غړېږي (حافظ)

(۲) تاوېدل- ګرځېدل- يو طرف ته کېدل.لکه: له حکمه نه غړېدل.

**پـه سترګو کښې غړېدل** :- (پـه سترګو کښې څرخېدل- سترګو تـه وړاندې وړاندې کېدل- د چا يادېدل.

**له سترګو غړېدل** :- (د سترګونه يو طرف ته کېدل- د سترګو نه پناه کېدل.
چې له سترګو ئې غړېږي غنم رنګه
جدايي ئې لکه قحط د غلــې دے (خ خ خ)

**غړېـدل** :- (غَ+رِي+دَ+لْ-[مـص] - رغړېـدل- د يـو خـاص محـور نـه چـاپيره چورلېدل- يا په خاص حلقه کښې ګرځېدل.

**غړېدل** :- (غَ+رِي+د+لْ-[مـص] - مجـازاً سـاه غړېـدل پـه چـا کښـې- ژونـدے ((بودل)).

**غړېدنګ** :- (غَ+رِي+دَ+نْ+ګْ-[اق-حمص] (و ـــــــ غړېدنه).

**غړېدنه** :- (غَ+رِي+د+نَ-[حمص] - ګرځېدنه- مخ اړونه.

**غړېـدونکے** :- (غَ+رِي+دُو+نْ+کَے-[اس-فـا-مـذ-ج:کـي] - ګرځېـدونکے- مـخ اړونکے.

**غړېـک** :- (غَ+رِي+کْ-[اس-مـذ-ج:ونـه] - د تنـي د بنـدولو سـورے- کـاج- غړياشه. (۲) د ښپلۍ د ترلو پټه يا تسمه. (۳) د لور غاړه. (ق)

**غړيکور** :- (غّ+رِي+کَ+وْ+رْ-[صف-مذ-مو:ه] - غړياکـه لـرونکے- هغـه ګـډه يـا بزه چې غړنکۍ لري- غړنکۍ واله.

**غړيو** :- (غَ+ړ+يو- د ((غړي)) جمع ده او اضافي او مجروري وغېره (متغيره) شکل دے.
د طلب غړي مې لاندې شول تر غرونو
هغه ښېل ياران په کومو غړيو غــواړم (خ خ خ)

**په غړيو غړانګ** :- (په غړيو ښکاره.

لــه هغـــه چـــې په بدۍ تـــــه ولاړېږي
ښۀ ئې پروت په غړيو غړنګ او په زړۀ بوړ (حميد بابا)

**غز** :- (غَ+زْ-[اس-مذ-ج:ونه-ان] - د مشهورې ونې نوم- د ګزونه.

**غز مازوګے** :- (ــــ+ما+زُو+ګَے-[اپ تر-اس-مذ] - د غز د ونې مېوه. غزلنے.

**په خونه غز نۀ لرل** :-

**په مينه غز نۀ لرل** :- (مجـازاً هېڅ جائيـداد او زمکـه کـور وغېـره نۀ لـري هېـڅ نۀ لري.

**دغزبُور** :- (ــــ+بُو+رْ-[اس-مذ] - د غز د ونې پاڼې چې نري تيلي شان وي. لکه: د غز په بور غرېږي باد!

**غـزا** :- (غَ+زا-[ع-اس-مـو-ج:ګـانې-وې] - د ديـن دپـاره کـافرانو سـره جنـګ- جهاد.

**غزا کول** :- (مص-تر) - د دين دپاره کافرانو سره جنګ کول- جهاد کول.

**غـزالـه تلـل** :- (د ديـن دپـاره کـافرانو سـره د جنـګ دپـاره تلـل- پـه جهـاد تلـل- جنګريز له تلل.

**غزا** :- (غَ+زا-[اس-مو] - مستي- خوشحالي- هوس.
کجه کجه حمـاري په باسين راغله
برندې سترګې بې د مئيو د غزا نه (هجري)

**غزا کول** :- (مستي کول- هوس کول- عېش کول.
د تــرخې اوسپنې توره کړه سازه
غزا به کله په هغه شمشير وکړي (خ خ خ)

**غزاوشوه** :- (ــــ+وُ+شْ+وَ-[جمله] - (۱) يو محاوره ده چې څۀ وشو؟ يا څۀ بـاك لري- څۀ فرق لري؟
که د زړو په تخت کښېني غزا وشوه
و فهيم وتــه کم فهمـــه بې عزت ئې (رحمان بابا)

(۲) تکيه کلام دے. (ق)

**غزات** :- (غُ+زا+تْ-[ع-اس-ج] - د ((غازي)) جمع ده. (و ــــ غازي)

**غـزال** :- (غَ+زا+لْ-[ع-اس-مـذ-ج:ان] - (۱) د هوسۍ بچے- کـبلے. (۲) د غـزال د ښکلو تورو سترګو له کبله ورله معشوقې يا محبوب سره تشبيهه ورکولے شي.
د معشوقې تورې سترګې غمزه کړې
په غـــزل کا لکـــه سترګې د غزال (خ خ خ)

**غزال سترګې** :- (ــــ+س+تْ+رْ+ګې-[ع-ف-ت-تر-صف] - د هوسۍ د بچي يا کبلي په شان ښکلې او غټې سترګې لرونکے.

**غزالـه** :- (غَ+زا+لَ-[عـف تـر-اس-مـو-ج:لـې] - (۱) د ((غـزال)) تانيـث دے د هوسۍ ماده بچے- کبلۍ. (۲) د سترګو د ښائست لـه کبلـه معشوقې يا محبوب سره تشبيهه ورکولے شي.(۳) د زنانه ؤ په نومونو کښې راځي.

**غزالي** :- (غَ+زا+لِي-[اس-مذ](۱) د ((غزالي)) نومې کلي اوسېدونکے (۲) غزالي بـن محمـد الطوسـي. د امـام غزالـي کشـر ورور چـې د شـافعي مذهب باني ؤ.

**امام غزالي** :- (ا+ما+مْ+ــــ- محمد بن محمد ابو حامد الغزال ۱۰۵۸ء کښې په طوس کښې پيدا شۀ. د ډېرو لويو لويو علماؤ نه ئې زده کړه وکړه. او بيا خليفه هم يـو لـوے عـالم او امام شۀ. د بغداد مدرسه نظاميه کښې استاذ وۀ بيـا د نېشـاپور پـه مدرسة العلوم کښـې استاذ وۀ. ۱۱۱۱ء کښې په طوس کښې وفات شو. په تاليفاتو کښې ئې کېميائې سعادت او احيائې علوم دين ډېر مشهور دي.

**غزل** :- (غَ+زَ+لْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه-لي-يات]- اصلاً د دې معنیٰ ښځو سره خبرې مجلس او عشق کول دي. اصطلاحاً- د شاعرۍ هغه صنف دے چې پکښې د معشوقو ښائست، حسن او هغو سره د مينې او د عشق خبرې په ښکلي انداز کښې بيانې شوې وي.

دا په اول سر کښې د قصيدو يوه برخه وه. بيا وروستو يو جدا صنف وګرځېد. او په شاعرۍ کښې ئې د ټولو نه لوړ او مقبول مقام بيامونډ.

د دې ډېر وزنونه دي. د شعرونو شمېر ئې کم نه کم پنځه دے. او د زيات څۀ خاص حد نشته. خو وائي چې دا دې طاق ضرور وي. هر يو شعر په کښې ځان له جدا مضمون لري.

د سر دواړه مصرعې ئې هم قافيه وي. چې مطلع نومېږي. او بيا ورپسې نورې ټولې دويمې مصرعې د اولني بيت هم قافيه وي. په اخريني شعر کښې چې مقطع بللے شي. شاعر خپل تخلص راولي.

(ځيني خلک ورته ((بدله)) او ځينې ورته ((رباعي)) هم وائي. خو دا دواړه جدا صنفونه دي)

**غزل خوانه** :- (ـــــ+خ+وا+نَ)-[عپ تر-اس-مو-ج:نې]- د ((غزل خوان)) تانيث دے.

**غزل خوان** :- (ـــــ+خّ+وا+نْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان]- غزل ويونکے- غزل اورونکے.

**غزل خواني** :- (ـــــ+خّ+وا+نِي)-[عف تر-اس-مو]- غزل په سُر سره ويونکے.

**غزل سرائي** :- (ـــــ+سَ+را+ئي)-[عف تر-اس-مو]- (۱) د غزل په سُر سره وېنا. (۲) د غزل جوړول.

**غزل ګو** :- (ـــــ+ګو)-[عف تر-اس-صف-مذ]- (۱) د غزل ويونکے- غزل اورونکے. (۲) د غزل په صنف کښې شاعري کوونکے.

**غزل ګويي** :- (ـــــ+ګو+يي)-[عف تر-اس-مو]- (۱) غزل وئينه. غزل نورو ته اورونه. (۲) غزل جوړونه- د غزل شعرونه برابرونه. (۳) د شاعرۍ په اصنافو کښې د غزل په صنف کښې شاعري کول.

**غزل وئيل** :- (۱) په مشاعره کښې يا هسې مجلس کښې (خپل) غزل اورول. (۲) غزل جوړول- د غزل شعرونه برابرول.

**دغزل طرح** :- (ـــــ+طَ+رْ+حَ)-[عپ تر-اس-مو]- هغه مصرع کومه چې د يوې مشاعرې دپاره مقرره کړې شي او بيا شاعران د دغې مصرعې په وزن، قافيه، رديف کشې خپلې غزلې جوړوي. او بيا ئې په مشاعره کښې اوروي.

**ملي غزل** :- (مِ+لْ+لِي+ـــــ)-[ف پ-تر-اس-مذ-ج:ونه]- ملي سندره- د قوم او ملك د ستاينې سندره.

**غزلنے** :- (غَ+زْ+لَ+نَے)-[اس-مذ-ج:نې]- د غز د ونې دانې- د غز ګل.

**غزلون** :- (غَ+زْ+لُو+نْ)-[اس-جم]- د غز بُوره- د غز د پوستکي مېده.

**غزلونه** :- (غَ+زَ+لُو+نَ)-[اس-ج]- د ((غزل)) جمع ده.

پـــه تعريـــف د دلبرانـــو غزلونـــه
په صفت د سترګو وروځو زلفو خال

**غزله** :- (غَ+زَ+لَ)-[اس-مو-ج:غزلې]- وـــــــــ غزل.

**غزلې** :- (غَ+زَ+لې)-[اس-مو-ج]- د ((غزل)) جمع ده.

**غزلې وئيل دچا** :- (تعريفونه کول- صفتونه کول. مدحې وئيل.

**غزلي** :- (غَ+زَ=لِي)-[وـــ غزل ګو] (۲) غزل سره تعلق لرونکي- غزل ته منسوب.

**غزليات** :- (غَ+زَ+لْ+يا+تْ)-[ع تر-اس-ج]- د ((غزل)) عربي جمع ده.

**غزنوي** :- (غَ+زْ+نَ+وي)-[اس-مع]- (۱) د بادشاهانو هغه خاندان چا چې په افغانستان او پنجاب حکومت کړے دے. ددې خاندان د بادشاهۍ بنياد سبکتګين ايښے وۀ. دې خاندان د ۹۷۷ ء نه تر ۱۱۹۱ ء پورې باچاهي کړې ده. اخر سلطان الدين غوري د دوي د بادشاهۍ خاتمه وکړه.(۲) سلطان محمود ته د غزي په نسبت سره غزنوي وائي- ځنې وخت د ((غزنوي)) د لفظ نه سلطان محمود غزنوي مراد اخستے شي. (وـــــــ محمود غزنوي).

غزنوي ؤ په غزني کښې
چـې ئـــې کړې هم غزا (خ خ خ)

**غزني** :- (غَ+زْ+نِي)-[اس-مع]- په افغانستان کښې يو مشهور ښهر دے چې د سلطان محمود غزنوي دارالحکومت ؤ. د هغۀ په وخت کښې ئې ډېر شهرت ؤ. بيا وروستو تر ډېرې مودې د غزنوي خاندان د بادشاهانو د تخت ځاے پاتې شوے دے.

**غزنيچے** :- (غَ+زْ+ني+چَے)-[صف-مذ-مو:ې]- د غزي د ښهر يا د علاقې جوړ شوے څيز. لکه: غزنيچے پوستين.

**غزوات** :- (غَ+زَ+وا+تْ)-[ع-اس-ج]- د ((غزوه)) جمع ده.(وـــ غزوه).

**غزول** :- (غَ+زَ+ؤ+لْ)-[مص]- (۱) اوږدَول- طول ورکول- په اوږدوالي خورول. (۲) راپـــرزول- پـــه زمکـــه را خلاصـــول- پـــه زمکـــه څملـــول. (۳) شکست ورکول- ماتې ورکول.

**پښې غزول** :- (پ+ښې+ـــــ)-(۱) پښې اوږدول- څملاستل.

بې وفا يار مې د سرائې کټ دے
د سرائې په کټ کښې هر سړے پښې غزوينه (ټپه)

(۲) د کوم کار نه انکار کول- لټ کېدل.

**لاس غزول** :- (۱) لاس ور اوږدول- لاس څۀ څيز ته رسول. (۲) د کوم کار نه منع کول. (۳) سوال کول- خېر غوښتل.

**لاس غــزول چاتــه** :- (د چا طرف تـه لاس ور وږدول- د امـداد دپـاره لاس ور وږدول- امداد کول.

**لاس غزول (يو کارتـه)** :- (لاس ور اوږدول- مجازاً کار په لاس کښې اغېستل- په کار لاس پورې کول.

**غزولے** :- (غَ+زَ+ؤ+لَے)-[اس-مف-مذ-ج:لي]- (۱) هغه څيز چې په اوږدو خور کړے شوے وي. (۲) هغه کس چې په زمکه (وغېره) اوږد اوږد اچولے شوے وي. مجازاً را پرزولے شوے. ماتې ورکړے شوے.

**غزونګ** :- (غَ+زَ+ؤ+نْ+كْ)-[اق-حمص]- وـــــــ غزونه.

**غزونه** :- (غَ+زَ+ؤ+نَ)- اوږدونه- طول ورکونه- درازکونه- په اوږدوالي خورونه.

**غزونکے** :- (غَ+زَ+وُو-نْ-کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- اوږدَونکے- په اوږدوالي خورَونکے- طور ورکوونکے.

**غزوني** :- (غَ+زَ+ؤ+نې)-[اس-مو]- وږدېدنه- لاس و پښې وږدونه. ستوماني اېستنه- خصوصاً سحر وختي د خوبه د پاڅېدو نه وروستو د ستومانۍ يا د خوب خمار لرې کولو دپاره په ولاړه لاسونه او بدن وږدونه.

**غزوه** :- (غَ+زْ+وَ)-[ع-اس-مو-ج:وې-ات]- غزا- جهاد- د کافرانو سره د دين دپاره هغه جنګ چې حضور پاك صلی الله عليه وسلم پکښې پخپله شامل شوے ؤ.

**غزه** :- (غَ+زَ)-[وـــــــ غزے]

**غزے** :- (غ+زَے)-[اس-مذ-ج:زي]- يوه وړه شان نازکه مرغۍ چې توربخن رنګ او اوږدې اوږدې پښې لري- اکثره په جبو کښې موندے شي. وائي

چې څوک وويني نو خپل سر په وبنو کبنې ننه باسي- او ځان محفوظ وګڼي. ځکه په اسانه نيوے شي.

**غلے غزے** :- (غَ+لَے+ـــ)-[اپ تر-صف]- هغه سړے چې په ظاهره غلے او ساده غونډې ښکاري- خو په حقيقت کښې ډېر چالاك او چالباز وي. (غالباً چې د غزي (مرغے) د عادت نه دا محاوره جوړه شوې وي).

**غزېدل** :- (غَ+زې+دِ+لْ)-[امص]- (۱) اوږدېدل- په اوږدوالي خورېدل. طول ورکړے کېدل- درازېدل. (۲) څملاستل. (۳) د څۀ کار نه انکار کول- لتې کېدل.

**غزېدنګ** :- (غَ+زې+دَ+نْ+ګ)-[اق-حمص]- و ـــــ غزېدنه.

**غزېدنه** :- (غَ+زې+دِ+نَ)-[حمص]- (۱) اوږدېدنه- په اوږدوالي خورېدنه. (۲) د ارام دپاره څملاستنه.

**غزېدونکے** :- (غَ+زې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- (۱) اوږدېدونکے- په اوږدوالي خورېدونکے. (۲) څملاستونکے.

**غزېدۀ** :- (غَ+زې+د)-[حمص]- و ـــــ غزېدنه.

**غڅ** :- (غَ+څْ)-[ف-اس-صوت]- (۱) هغه اواز چې د ګولۍ يا دبل کوم داسې څيز په تيزۍ سره په خوا کښې تېرېدو سره اورېدے شي.- شخ- شئين. (۲) د بَت واله يا د نوو جامو اواز. شغ شغ- شغهار.

**غڅدي** :- (غَ+څْ+دي)-[اس-مو-ج:ی]- خېمه- کږدۍ.

**غڅغوبے** :- (غَ+څْ+غُ+وَ+بَے)-[اق-اس-مذ]- غڅګاؤ.

**غڅکه** :- (غَ+څْ+کَ)-[اس-مو]- و ـــــ غجکه.

**غڅګاؤ** :- (غَ+څْ+ګا+ؤ)-[ف-اس-مذ]- د غوا، غوايانو يو قسم چې د تبت (يا دخطا) په علاقه کښې موندے شي. د دې لکۍ د وېښتو نه مچ شړنې جوړولے شي.

**غږ** :- (غَ+ږ-ګ)-[اس-مذ-ج:ونه]- (۱) اواز- ږغ- ژغ. (۲) شهرت- مشهورتيا- درز- نوم- کوکې.

يادښو زلميو غږ دے په مېدان کښې

يا د ښو دلبــــــروځي په جهان کښې (خ خ خ)

(۳) ډز- د ټوپك يا د تماچې وغېره د چلېدلو اواز.

**غږ ايستل–اباسل (دخولې نه)** :- (غږ کول- اواز کول- خبره قدرې کول- څۀ وئيل. (عموماً په نفي کښې استعمالېږي)

**غږبندول** :- (۱) اواز بندول- خبرې بندول- چپ وسېدل. (۲) په تقرير پابندي لګول.

**غږبندي** :- (ـــ+بَ+نْ+دي)-[اس-مو]- (۱) اواز بندونه. (۲) په تقرير پابندي.

**غږ پوهان** :- (ـــ+پو+ها+نْ+د)-[اس-فا-مذ]- (۱) د غږونو د علم عالم د خولې نه د وتونکو اوازونو علم لرونکے. (۲) هغه کس چې د خلکو اوازونه پېژني- اواز پېژندونکے.

**غږ پوهانده** :- (ـــ+پو+ها+نْ+دَ+ه)-د غږ پوهاند مؤنث دے.

**غږ پوهنه** :- (ـــ+پو+هـ+نَ)-[اس-مو]- د غږونو علم- د خولې نه د وتونکو اوازونو علم- علم اصوات- علم الصوت.(انګ: فونالوجي- فونې ټکېس)

**غږ ترلرې لرې تلل** :- (تر لرې لرې پورې مشهورېدل- ډېر زيات شهرت موندل.

**غږ تلل** :- (اواز تلل- مشهورېدل.

**غږ غرض نۀ کول په چا** :- (د چا په مقابله کښې دخل نۀ ورکول- بې عرضه او لاتعلقه پاتې کېدل. غم غرض نۀ کول.

**غږ غوږ** :- (ـــ+غُو+ګ-ږ)-[اس-مذ]- اواز- د خبرو اواز. (غوږ تابع مهمل دے- د غږ تاکيد دپاره راځي).

**غږ غوږ نه ختل** :- (هېڅ قسم آواز نۀ راتلل- کامله خاموشي ((بودل)) چپه چپيا ((بودل)).

**غږ غوږ نۀ کول** :- (هېڅ خبره نۀ کول- چپ پاتې کېدل.

**غږ کول** :- (۱) اواز کول- رابلل. (۲) د خولې نه اواز ايستل- خبره د خولې نه ايستل.

**غږ نۀ ايستل – اباسل (د خولې نه)** :- (د خولې نه اواز ايستل- بېخي غلے يا چپ پاتې کېدل- جواب نۀ ورکول.

**غږ نه ختل (د خولې نه)** :- (۱) د خولې نه اواز نۀ ختل- چپ پاتې کېدل- جواب نۀ ورکول. (۲) د شرم يا د وېرې غلے پاتې کېدل.

**غږ نۀ کول** :- (۱) اواز نۀ کول- خبره نۀ کول- جواب نۀ ورکول. (۲) حال نۀ وئيل- ذکر نۀ کول. لکه: د دې خبرې چاته غږ مه کوه!

**غږغره** :- (غَ+ګ/ژ+غَ+ګ/رَ)-[اس-مو-ج:رې]- جرس- د غږېدو اله- کړنګانې.

**غږول** :- (غَ+ګ/ژ+ؤ+لْ)-[امص]- (۱) اواز ايستل- (د څۀ څيز يا الې نه) (ف: نورختن)

چې دا هسې لوے دولت ئې روزي شوے

غـــــږوي د خـوشحالۍ په چنګ بربط (خواجه محمد)

(۲) په خبرو کول- دچانه په خبرو کولو خبرې ايستل- په خبرو خبرو کښې د چا د زړۀ حال معلومول.

**غږونه** :- (غَ+ګ/ ژو+نَ)-[اس-ج]- د ((غږ)) جمع- اوازونه.

په دنيا دوه څيزونه مزه کا

يا سپينه خولۀ يا د بوږي ټوپك غږونه (ټپه)

**دژبې بيناديي غږونه** :- (پ-تر-اس-ج)- هغه اصلي او بنيادي غږونه د کومو نه چې د يوې ژبې الفاظ وغېره جوړېږي. فونيمونه.

**غږونه** :- (غَ+ګ/ژ+ؤ+نَ)-[حمص]- د ساز يا الې وغېره نه اواز ايستنه.

**غږوونکے** :- (غَ+ژ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- د کوم ساز يا د موسيقۍ د آلې نه اواز (يا آوازونه) ايستونکے. نوازنده.

**غږهارے** :- (غَ+ژْ+ها+رَے)-[اس-صوت]- د پېزار يا دبل کوم داسې څيز اواز.

**غږېدل** :- (غَ+ژې+د+لْ)-[امص]- (۱) د موسيقۍ د کومې الې اواز يا اوازونه (په سُر سره) ايستل. (۲) خبرې کول- کړېدل. لکه: د ټېليفون په ذريعه غږېدل. (۳) وخت کېدل. لکه: لس بجې وغږېدې- يعنې د لسو بجو وخت شۀ. (اصلاً د بجه (ه) او د ((غږېدلے)) دواړو تعلق پخوانۍ زمانې يو دستور سره دے، چې په ښهرونو کښې به د هر پهَر په تېرېدلو يو لوے ګړيال نه به ټنګهار ايستلې کېدۀ. نو خلك به پرې خبر شو. چې يو پهَره يا دوه پهَره وغېره تېر شول).

**ډول سرنا غږېدل** :- (خوشحالي کېدل- وادۀ ښادي بودل.

**نوبت غږېدل** :- (نَو+بَ+تْ+ـــ)- نغاره غږېدل- مجازاً دوران ((بودل)) حکومت يا سرداري ((بودل)) شهرت ((بودل).

مثال د يار د حسن نشته

تر عرشه پورې ئې غږېږي نوبتونه (ټپه)

**غږېدنه** :- (غَ+ګ/ژې+د+نَ)-[حمص]- (۱) د موسيقۍ د کوم ساز اواز(يا اوازونه) ايستنه. (۲) خبرې کونه- ګړېدنه- ګپ لګونه.

**غږېدونکے** :- (غَ+ګ/ژې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- (۱) هغۀ څيز (ساز وغېره) سُرسره اواز يا اوازونه وباسي. (۲) خبرې کوونکے- ګړېدونکے.

**غرېز** :- (غَ+ګ/ژي+زْ)-[اپ تر-صف-مذ-مو:ه]- (۱) غږواله- اواز واله- اواز

لرونکې. (۲) هغه تورې چې د کوم په ادا کولو کښې (ساه سره) اواز هم ووزي. (انګ: وائېس). لکه: د غـبن د تـوري اواز پـه مقابلـه کښـې د ((خ)) چې ناغړېز تورې دې.

**غړېز فونيم** :- (ـــ+فو+ني+مْ)-[انګ-پ تر-اس-مذ-ج:ونه]- د يوې ژبې هغه فونيم (د ژبې بنيادي غږ) چې ادا کولو سره ئې اواز هم پېدا کېږي.

**غړېزې** :- (غَ+ګ/ژي+زې)- د ((غړېزه)) جمع ده.

**غړېزي څپې** :- (ـــ+سَ+پې)-[پ تر-اس-ج]- دَهوا هغه څپې کومې چې اواز د يو ځاے نه بل ځاے ته وړي. (انګ: ساؤنډ وَېوز).

**غـس** :- (غ+سْ)-[اس-مـذ]- (۱) مـنګن- کټمـل- غسـک- سريشـه. (۲) مجازاً حشره- ادنٰی حقير شے. (۳) کمزورے. (د عربي د ((غث)) بدل شکل)

**غسال** :- (غَ+سْ+سا+لْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو):ه]- غسـل ورکـونکے- (خصوصاً د مړو لمبونکے) مُرده شوے- مړ ولونے- لمبونے.

**غساله** :- (غَ+سْ+سا+لَ)-[عف تر-اس-مو-ج:لې]- د ((غسال)) تانيث دے.

**غسک** :- (غَ+سْ+کْ)-[ف-اس-کْ]- کټمل-کُبَيک- منګڼ- سريشه.

**غسـل** :- (غَ+سْ+لْ)-[مـص]- خټـل پورتـه کېـدل. چرتـه لـوګے غسـي منـدوري ورواته کسي. (متل)

**غسل** :- (غُ+سَ+لْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- د ټول وجود وينځنه- لمبېدنه لمبل.

چار د مـــړي تکبيـــرونه
غسل درې لري فرضونه (سعيد)

**غسل اوړېدل په چا** :- (اودس اوړېـدل- پـه خوب کښې شېطان راتلل- احتلام کېدل.

**غسل خانه** :- (ـــ+خا+نَ)-[عف تر-اس-مو-ج:نې]- هغـه کوټـګې پـه کومـه کښـې چـې غسـل کـولے شـي- د لامبولـو کـوټـګې. د لامبولـو کوټـه- چارچوبې.

**غسل کښې ((بودل))** :- (د اودس د اوړېدلو نه پس ئې لا لامبلے نۀ ((بودل)) په پليت وجود ((بودل)) ناپاکه وجود ((بودل)).

**غسل کول** :- [مص تر]- لامبل- ټول وجود وينځل- په ټول بدن اوبۀ اړول.

**غسـل ورکـول** :- [مـص تـر]- (۱) مـړي لمبـول- د مـړي ټـول بـدن وينځـل. (۲) مطلق لمبول.

**غسلي** :- (غُ+سْ+لي)-[اس-صف]- هغه کس چې اودس پرې اوړېدلے وي- خو لائې لامبلي نۀ وي- ناپاکه.

**غسـه** :- (غَ+سَ)-[اس-مـو-ج:ې]- يـو مشـهور ځنـاور چـې د قبرونـو نـه مـړي راوباسي- ګورګټي- ګورګوټه- ګورګټ- لغبسه.

**غسيل** :- (غَ+سي+لْ)-[ع-اس-مذ]- هغه چې غسل ورکړے شوے وي

**غـش** :- (غ+شْ)-[ع-اس-مـذ]- کوټـه- ناکره- چې خالص نۀ وي- ګډون والـه. (عموماً (غسل) سره يو ځاے راځي.

مرد د مېدان دے ښځه دکټ ده
نــه دا خبـــره د غش د وټ ده (خوشحال)

**غشک** :- (غَ+شْ+کْ)-[اس-مذ]- (۱) غوشايه. سوټې. (۲) فتنه- جګړه- شخړه.

**غشـګين** :- (غَ+شْ+ګـي+نْ)-[اصـف-مـذ-مـو-:ه]- خطرنـاک- هلاکـت تـه رسوونکے. سنج (کاکړ)

**غشـــلړه** :- (غَ+شْ+لَ+ړَ)-[اس-مـــو-ج:ړې]- (۱) غوشـــايه- شُـــوټې. (۲) مجازاً جګړه- تنازعه- شخړه. د فتنې فساد نه ډک کار.

**غشو** :- (غَ+شَو)-[اس-مذ]- د اوسپنې وغېره هغه دندانه داره الـه چې اس پرې پاکوي- خرخره.

**غشو کول** :- (اس) خرخره کول.

**غشے** :- [اس-مذ-ج:غشي]- (۱) د لينديّ تير- ناوک.

د ازاد غشي ئې هسې رنګ اثر دے
چې پناه ئې نۀ په خول شي نه په زغره (خواجه محمد)

(۲) د شکونړ خار.

**غشے په زړۀ خوړل** :-

**غشے په ځيګر خوړل** :- (۱) زړۀ ته زخم رسېدل- ډېر زيات دوك يا غم رسېدل- (۲) پېغور اورېدل.

**غشے په ګروټ لرل** :- (مجازاً: غشے وشتلو ته تيار لرل.

چې بېلتون غشے په ګروت لري حافظه
په دغــه شاربيل به ډېر زړونه سوري که (حافظ)

**غشے خوړل** :- (۱) پـه غشـي ويشـتلے کېـدل- پـه غشـي (تير-ناوک) سره زخمي کېدل. (۲) دپېغور خبره اورېدل.

**غشے لګول** :- (رسا غشے وشتل- په نخښه ټيک غشے ويشتل.

که چا کړے د ګومـــان لنده بر کښه
د باور غشے به لګ نۀ کړي په نخښه (حميد بابا)

**غشے وشـتل** :- (د لينـدۍ پـه ذريعـه غشـے (نـاوک) ګـوزارول. پـه غشـي نخښـه ويشتل.

**غشے هسک کېدل** :- (غشے د ويشتلو نه پس په هوا کښې پورته کېدل.

خوش ډېر په خپلـــي کامرانۍ مه شه
غشے چې هسك شي بيا پرېوتونے دے (سعيد)

**اور غشے** :- (او+رْ+ـــ)-[اس-مذ-ج:شي]- د اتش بازۍ يو څيز.

**هوائي غشے** :- (هَ+وا+يي+ـــ)-[پ تر-اس-مذ-ج:شي]- (۱) هغه غشے چې په هوا کښې (بې د کومې نخښې نه) وويشتے شي- توکلي ګوزار. (۲) د اتش بازۍ يو څيز دے.

**غشيان** :- (غ+شْ+يا+نْ)-[ع-اس-مذ]- يو مرض چې سړے په کښې بېهوشه شي.

**غبنت** :- (غَ+خْ / شْ+ت)-[احمص]- غړنه- تاؤ- غبنتنه.

**غبنت کېدل** :- (غړل کېدل- غبنتلے کېدل.

له نامـــردو د مــــردۍ امېد خطا دے
کله غبنت شي په هوس لـه شګو پړے (سعيد)

**غبنتل** :- (غَ+ خْ / شْ+تَ+لْ)-[مص]- (۱) غړل- تاؤ ورکول- تاوؤلو سره پړے وغېره جوړول. (د فعلونو په جوړولو کښې ((غړل)) سره جوړې مصدر دے. (۲) مضبوطول- کلکول.

**غبنتل تـوپ** :- (ـــ+تـو+پْ)-[پ تر-اس-مـذ]- (۱) غبنـتل والـے- کلکوالے- مضبوطيا- قوي والے. (۲) غبنتنه- تاؤشوے توب.

**غبنتل تيا** :- (ـــ+ت+يا)-[او ـــــــ غبنتل توب]

**غبنتلے** :- (غُ+شْ+تَ+لَے)-[اس-فا-مذ-ج:لي]- (۱) غړلے شوے. تاؤ شوے. (۲) (صف) طاقتور- قوت ناك- تکړه- مضبوط. (۳) چالاك- چُست چابك.

**غبنتلے کول** :- (۱) مضبوطول- قوي کول. (۲) غړلے کول- تاؤ تاؤ کول

**غبنـتلے کېـدل** :- (۱) مضـبوطېدل- قـوي کېـدل. (۲) غـړلے کېـدل- تـاؤ را تـاؤ کېدل.

**غبنتنه** :- (غُ+خْ /شْ+تَ+نَ)-[احمص]- (۱) غړنه- تاؤ را تاؤکول- پـه تـاوولو سره پړے جوړونه. (۲) مضبوطونه- قوي کونه.

**غبنتونکے** :- (غُ+خْ/شْ+تُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- غړونکے- د غبنتلو یا غړلو کار کوونکے- تاؤ ورکوونکے.

**غبنته** :- (غُ+خْ/شْ+تَ)-[حمص]- (۱) غبنتنه- غړنه. (۲) مضبوطوالے. (۳) د زنانهٔ د تندي د وېښتو یو خاص قسم اودنه.

**غبنته** :- (غَ+خْ/شْ+تَ)-[اس-مو-ج:تې]- کینه- د زړهٔ خیرې- وسوسه- دسیسه.

چې غبنتې راته د مرګ کوې رقیبه
په لباس په پسته ژبه مې ورور مه شې (حسېن)

**غبنتے** :- (غْ+خْ/شْ+تَے)-[و______ غبنتلے]

**غصه** :- (غُ+صْ+صَ)-[ع-اس-مو-ج:صې]- (۱) خفګان- نول. (۲) سخت قهر- تاؤ- غضب.

**غصه اُباسل– وېستل– اوښکل** :- (مص تر)- قهر اوښکل- بد رد وئیل خپل خفګان په سختو خبرو ورښکاره کول- د زړهٔ براس ایستل- زړهٔ سپکول (په چا).

**غصه تُوکل** :- (مص-تر)- غصه د ځان نه لرې کول- قهر د زړهٔ نه ویستل.

**غصه سړول** :- (مص-تر)- (۱) غصه کمول- غصه لرې کول. غصه د زړهٔ نه اېستل. لکه: په خوږو خبرو ئې د هغهٔ غصه سړه کړه. (۲) تاؤ وېستل- براس اېستل- (په چا)- ډېر بد رد ویل (چاته).

**غصه سړول په چا** :- (چاته بد رد وئیل- چاته ډېرې سپورې ستغې وئیل د یو کس قهر په بل چا ښکاره کول. لکه ورانے فلاني کړےؤ خو ملك غصه په ما ووېسته.

**غصه سړېدل** :- (د غصې تاؤ او ګرمي نهٔ پاتې کېدل- یا کمېدل- غصه نهٔ پاتې کېدل- قهر نهٔ پاتې کېدل.

**غصه کول** :- (مص-تر)- (۱) قهر کول- په قهرېدل- سختېدل- (فشار په غصه). (۲) قهرول- په سوخت کښې راوستل- قهر ور وستل.

**غصه کېدل** :- (قهرېدل- په قهر کېدل- سوختېدل- په سوخت کېدل- په غضب کېدل.

**غصه ناک** :- (ـــ+نا+ك)-[عف تر-صف مذ-مو:ه]- غصې واله- زر په قهر کېدونکے- زر خفه کېدونکے- غضبناك.

**غصه وېستل (په چا)** :- (چاته بد رد وئیل- چاته سپورې ستغې وئیل- د یو کس نه خفه کېدل- خو غصه په بل چا کول- لکه: ورانے فلاني وکړ او خان غصه په ما ووېسته.

**غصه یخول** :- (و______ غصه سړول)

**غصه یخېدل** :- (و______ غصه سړېدل)

**په غصه کښې** :- (په قهر کښې- په سوخت کښې- په خفګان کښې.

**په غصه کښې سور کېدل** :- (ډې زیات په قهر کېدل- د سره په قهر کېدل چې د مخ رنګ ئې سُور شي.

**په غصه کښې غاښونه چیچل** :- (ډېر په غصه کښې ((بودل)) ډېر په قهر کېدل.

**په غصه کول** :- (و______ غصه کول)

**غصې** :- (غُ+صْ+صې)- د ((غصه)) جمع ده.

**غصې کول** :- (ډېر خفګان ښکاره کول- ډېر قهر کول- د غصې خبرې کول- زور نه کول.

**غصې نیولے دے** :- (قهر په مخه کړے دے- په غضب کښې راغلے دے- غصې اخستے دے.

**د غصې نه– څخه** :- (د غصې په وجه- د قهر یا د خفګان له کبله.

**د غصې نه ډک** :- (ـــ+نَ+ډَ+كْ)- په ډېر خفګان کښې- ډېر په قهر- ډېر په سوخت- غضبناك.

**غضب** :- (غَ+ضَ+بْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) قهر- غصه- سخت. (۲) افت- عذاب- عتاب- فتنه. (۳) د صفت په طور- د اعلى درجې- ډېر زیات.

**غضب کول** :- (مص-تر)- (د صفت په توګه راځي) کمال کول- عجیبه کار یا خبره کول- د حد نه اوړېدل.

**غضب کوې** :- (۱) کمال کوې- (۲) ظلم کوې- زیاتے کوې. نا انصافي کوې.

**غضب نازلېدل په چا** :- (غضب راتلل- په عذاب کښې ګرفتار کېدل- (د خدا ے پاك په) قهر کښې راتلل.

**غضب ناک** :- (ـــ+نا+ك)- غضه ناك- قهرندوکے- قهر جن.

**غضب ناکه کېدل** :- (غصه کېدل- په قهر کېدل- سوختېدل.

**په غضب کښې** :- (په سوخته کښې- په عذاب کښې- په تکلیف کښې.

**په غضب کښې راګېرېدل** :- (په عذاب کښې را ګېرېدل- په تکلیف کښې راتلل- په سوخته کښې ننښتل.

**په غضب کښې ګرفتار کېدل** :- (و- په غضب کښې راګېرېدل)

درست اولس قبیلـــه واړه
ګرفتار په ډېر غضب شول (خ خ خ)

**د غضب** :- (د صفت په طور راځي) د کمال. ډېر زیات- بې حده- ډېر ښهٔ. لکه: د غضب حسن ورله خدا ے ورکړے دے.

**غضبان** :- (غَ+ضْ+با+نْ)-[ع-صف]- په ((غصه)) کښې- په قهر- قهرېدلے- د غصې نه ډك- غضب ناك- قهرجن.

زیر ظالم غضبان ترې بې غمه غریبان کړې
سر ئې په سکین د غضب غوځ کړې ترازې (حافظ)

**غضـــنفر** :- (غَ+ضَ+نْ+فَ+رْ)-[ع-اس-مـــذ-ج:ان]- (۱) زمـــرے- مـــزرے. (۲) بهادر- مېړنے- تورزن- (۳) د نارینهٔ په نومونو کښې راځي.

خوره خور ده له خپلو لېچو
غضنفـــــــر شه، نه رویا (خ خ خ)

**غفار** :- (غَ+فْ+فا+رْ)-[ع-صف-ج:ان]- (۱) پټونکے- پرده اچونکے بخښونکے- معاف کوونکے- عفو کوونکے- مغفرت کوونکے. (۲) د خدا ے پاك یو صفاتي نوم دے. (۳) د نارینهٔ په نومونو کښې راځي.

**غفاري** :- (غَ+فْ+فا+رِي)-[عف تر-اس-مو]- بخښنه- معاف کونه- مغفرت کونه- عفو- د خدا ے تعالى صفت.

**غفر** :- (غَ+فَ+رَ)-[ع-جمله]- معاف کړي- وبخښي- عموماً نور الفاظو سره استعمالېږي.

**غفرالله** :- (ـــ+(رَ+لْ)+لا+هْ)-[ع-جمله]- الله دې معاف کړي- الله دې وبخښي- خدا ے دې وبخښي. دعائیه جمله ده. چې د کوم مړ شوي کس د ذکر په وخت وئیلے یا لیکلې شي.

**غفرله** :- (ـــ+لَ+هُو)-[و______ غفرالله]

**غفران** :- (غُ+فْ+را+نْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) بخښنه- معافي- مغفرت- عفو (اصل معنٰى ئې پټونه ده).

زهٔ حافظ خـــراب یم تمام غرق په منجلاب یم
پاك مې په غفران کړے په نیران مې مه سېزې (حافظ)

(۲) د نارینهٔ په نومونو کښې راځي.

**غفران پناه** :- (ـــ+پَ+نا+هْ)-[عف تر-صف]- چا چې د خدا ے پاك په بخښنه

کنبې پناه اخستې وي- دا کلمه عموماً د مړو په حقله وئيلې شي. خدا ے بخښلے- مرحوم.

**غفران مآب** :- (ـــمَ+آ+بْ)-[و ـــــــ غفران پناه]

**غفراني** :- (غُ+فْ+را+نِي)-[عف تر-اس-مو]- هغه چې غفران (بخښنې معافي) سره تعلق لري- غفران ته منسوب.

**غفرانيت** :- (غُ+فْ+را+نـِي+يَ+تْ)-[ع-اس-مـذ]- بخښنـه- د بخښنـې خصوصيت- عفو ورکونه- مغفرت کونه.

**غفلت** :- (غَ+فْ+لَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) بې توجهي- توجه نۀ ورکونه- بې پامي- بې خبري- لاپرواهي. (۲) غلطي- خطا- خطايي- تېروتنه.

**غفلت شعار** :- (ـــش+عا+رْ)-[عف تر صف-مذ-مو:ه]- هغه چې عادت يا کار کسب ئې غفلت وي. غفلت کوونکے- غافله- لاپرواه- بې پرواه- بې احتياط.

**غفلت شعاري** :- (ـــش+عا+رِي)-[عف-تر-اس-مو]- غفلت خپله پيشه يا کار کسب ګرځول- هر وخت غفلت يا د لاپرواهي. نه کار اخستنه- غفلت کونه- توجه نۀ ورکونه.

**غفلت کول** :- (مص تر)- بې توجهي کول- څۀ کار ته توجه نه ورکول- بې پرواهي کول- د څۀ کار نه بې خبره پاتې کېدل.

**غفلت کېدل** :- (لاپرواهي کېدل- بې توجهي کېدل- خطايي کېدل- بې خبره کېدل.

**غفور** :- (غَ+فُو+رْ)-[ع-صف]- (۱) بخښلو واله- معاف کولو واله. بخښونکے- معاف کوونکے. (اصل معنٰی پټونه- پرده اچونه) (۲) د خدا ے تعالٰی يو صفاتي نوم دے. (۳) د نارينه ؤ په نومونو کنبې راځي.

**غفير** :- (غَ+فِي+رْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) ډېر زيات- کثير- (غفر پټولو تـه وائي- يعنې دومره ډېر خلک چې زمکه پرې پټه شي). (۲) پټوونکے.

**غک** :- (غَ+کْ)-[اس-صوت]- د بزې (چيلۍ) اواز.

**غکا** :- (غُ+کا)-[اس-صوت]- د چېلۍ- بزې اواز- غك.

**غکل** :- (غَ+کَ+لْ)-[مص]- د بزو يا د چېلو اواز کول. بين بين کول.

**غکنه** :- (غَ+کْ+نَ)-[حمص]- د بزو چېلو اواز کونه- بين بين کونه.

**غکول** :- (غُ+کَ+ؤ+لْ)-[مص]- بزې چېلۍ په اواز کونه- بزې چېلۍ پـه غکا کونه.

**غکېدل** :- (غَ+کي+د+لْ)-[مص]- د بزو چېلو اواز کول- د چېلۍ چغې وهنه- بين بين کول.

**غکېدنه** :- (غَ+کي+د+نَ)-[حمص]- د بزو چېلو اواز کونه. د بزې چېلۍ چغې وهنه.

**غل** :- (غَ+لْ)-[اس-مذ-ج:غلۀ-ونه]- (۱) څيزونه پټوونکے- چور. (۲) هغه کس چې د ((غل باچا)) په لوبه کنبې بېلي- هغه ته ((غل)) وئيلے شي. کوم کس چې په کنبې باچا شي هغه دغې غل لـه سزا ورکوي. (۳) هغه کارتوس چې ډز ونۀ کړي. يعنې ونۀ چلېږي- پوچ- کارتوس.

**غل او ساد (سعد) پېژندل** :- (نېك او بد سړي کنبې فرق کول- معلومول.

**غل او ساد (سعد) نه معلومېدل** :- (افرئ تفري ((بودل)) حالات خراب ((بودل)) چې نۀ په کنبې غل معلومېږي، نۀ ساد- د نېك او بد سړي پته نۀ لګېدل.

**غل باچا کول** :- (۱) د تاش په لوبه کنبې هغه لوبه کول- چې پکنبې څوك باچا څوك غل او څوك کوتوال وغېره جوړېږي. (۲) د تيلو پـه ډبلي بانديې د غل باچا لوبه کول- د ډبلي په زمکه غورزولو بانديې څوك باچا شي او څوك کوتوال.

**غل بازار** :- (ـــبا+زا+رْ)-[اپ تر-اس-مذ-ج:ونه]- هغه بازار چې مال په کنبې په پټه په اوچتو نرخونو خرڅولے شي. بلېك مارکيټ.

**غل بازاري** :- (ـــبا+زا+رِي)-[اپ تر-اس-مو]- مال د حکومت نه په پټه پـه غلا په ګرانو قيمتونو خرڅونه- چوربازاري.

**غل بازاري کول** :- (مال په پټه په ګرانه بيعه خرڅول.

**غل په غل پوهېږي** :- (غل سړے د خپلې پېشې خلک (غلۀ) بنۀ پېژني- يا د غـل تعلـق خپلو هم پېشه خلکو (غلـو) سره وي. غـل پـه غـل پوهېږي او مل په مل. (متل)

**غل تر غوږه شړل** :- (و ـــــ غل تر کوره زغلول).

څۀ بنـــۀ متل دے پښتنـو کړے
چې غل شاړۀ شي، نۀ چې تر کوره (خ خ خ)

**غل تر کوره زغلول** :- (د غل د رانيولو دپاره هغه پسې تر هغې منډه وهل- چې هغه خپل کور ته ورسي- لاځان محفوظ کړي.
(مطلب دا چې غل د غلا په وخت کنبې وليدے شي او هغـه وتښتي. نو ترڅۀ مېنځـه ورپسې زغلېدل پکار دي- چې وويرېږي- دا نۀ دي پکار چې تر کوره ورپسې لاړ شي.

**غل تر هنده شړل** :- (و ـــــ غل تر کور زغلول)

**غل جنګي** :- (ـــجَ+نْ+ګِي)-[اپ-تر-اس-مو]- پـه غلطه خبره جګړېدنـه پـه فضوله يا په غلطه خبره خوشې بحث کونه.

**غل چک** :- (ـــچَ+کْ)-[اس-مذ-ج:ان]- د ((غـل)) تصغير دے. وړوکے غـل- دُزدك.

**غل چکے** :- (ـــچَ+کَے)-[اس-مذ-ج:کي]- دغـل تصغير دے- وړوکے غـل- واړۀ واړۀ څيزونه پټوونکے- چالاك غل.

**غل د رڼا ورځې** :- (هغه غل چې په رڼا ورځ غلا کوي- پوخ يا زړۀ ور غل
زۀ خواجه محمد يم غل د رڼا ورځې
که غـل غلا کا په تورتم زما صاحبه (خواجه محمد)

**غل غدوے** :- (ـــغَ+دو+ے)-((غدوے)) تابع مهمـل دے. د ((غـل)) د تاکيـد دپاره راځي- لکه ((غل مل)) د غل د ټولي يو فرد- هغـه کس چې کسب ئې غلا کول وي.

**غل غښے** :- (ـــغَ+خَ/شے)-[اس-مذ-ج:ي]- تېرے غاښ- زياتي پيدا شوے غاښ.

**غل کارتوس** :- (ـــکـا+رْ+تُو+سْ)-[انـګ-پ تـر-اس-مـذ-ج:ونـه]- هغـه کارتوس کوم چې ناقص وي او ډز نۀ کوي.

**غل کاسير** :- (ـــکا+سي+رْ)- غلا کوونکے او فحش کار کوونکے. غل او بد اخلاقه.
هر چې غل کاسيروي د هغو سره مل مه شه! (خ خ خ)

**غل کول** :- (غل جوړول.

**غل کېدل** :- (مص)- (۱) غل جوړېدل- غـل ثابتېدل- (۲) د کارتوس نه چلېدل- ډز نۀ کول- (۳) د ((غل باچا)) په لوبه کنبې غـل جوړېدل. (۴) چاته پټ په خاؤ کنبې کښېناستل. لکه: فلانے راته غل شوے دے.

**غل ګے** :- (ـــګے)-[اس-مذ-ج:ګي]- د ((غل)) تصغير دے. وړوکے غل.

**پټ غل** :- (پُ+ټْ+ـــ)-[اپ تر-اس]- هغه غل چې خلکو ته ځرګند نۀ شي يعنې چاته نۀ وي معلوم چې دا غلا فلانې کړې ده.
((پټ غل باچا دے)) (متل)

**د خټکو غل** :- (د خټکو يعنې خربوزو غـل- د معمولي څيز غـل- معمولي غـل. لکه: د خټکو غل دے دوه سوکه ورکړه او پرې ئې ږده!

**د موټو غل** :- (و ـــــ د خټکو غـل. (۱) مـوټ يوه ګياه ده. چې لکـه د شوتلو

په پټو کښې کرلې شي او بيا مال يعنې څناورو تـه د خوراك دپـاره اچولـې شي. (۲) د معمولي څيز غل- معمولي غل.

**دغل په پل ختل** :- (د غل په پښې پښه ايښودل- غل جوړېدل.

**دغل مور** :- (ـــــ+مو+رْ-[هغه كس چې نۀ يوه خبره زغملے شي او نۀ ئې حال وئيلے شي. (غل چې په غلا كښې ونيوے شي) يا ژوبل شي- نو د هغۀ مور نه خو په ښكاره ژړلې شي او نۀ چاته خپل غم څرګندولے شي.
«غل مور د كندو شاته ژاړي» (متل)

**غل** :- (غِ+لْ-[ع-اس-مذ]- كينه- كدروت- د زړۀ خيرے. عموماً «غش» سره يوځاے راځي.

**غل وغش** :- (ـــــ+وَ+غِ+شْ-[ع-تر-اس]- خيرے- ګډون- كينه بغض عموماً د نفي په صورت كښې راځي- يعنې بې غل و غش- بغير د څۀ ګډون نه، اوكَره- بې د څۀ ټګۍ تورۍ.

دا بې غشه شراب د كومې مېخانې دي
چې زما د زړۀ ئـــې لرې غل و غش كړ (خوشحال)

**غُـل** :- (غُ+لْ-[اس-جم]- (۱) لـوے بـول. (۲) خراب او ګنده څيـز. (۳) د خراب څيز او بد نام سړي دپاره هم وئيلے شي.

**غل وچېدل (په ګنه كښې)** :- (ډېرې زياتې ويرې اخېستل.

**غــل بنګــی** :- (ـــــ+بَ+نْ+ګَ+ی)-[اس-مـو]- (۱) د غلـو كولـو ځـاے. ټټـۍ- پاخانه- چارچوبۍ. (۲) ګنده او بد بوداره ځاے.

**غل به ورکړم (در)** :- (جمله) د څۀ څيز د نۀ وركولو په موقع وئيلے شي يعنې دا څيز به هېڅكله ور نۀ كړم. (عموماً زنانه استعمالوي)

**غل پاكول** :- (۱) د غلط كار دپاره څۀ پرتوګ جوړول- د چانه بدنامي لرې كولو كوشش كول. (۲) د چا خراب كړے كار سمول.

**غل په خوراك ((بودل))** :- (په بدو كارونو كښې بوخت «بودل».

**غل په خولۀ كښې وركول** :- (جمله)- (۱) په بد يا خراب كار كښې اخته كول- (۲) بدنامول- رسواكول- پښېمانه كول. (۳) په يو ه خبره يا كار تنګول.

**غل په سر تيل** :- (خراب كارونه كول- د بدنامۍ كارونه كول.

**غل په متيازو وينځل- مېنځل** :- (د يو ګنده كار نه د بچ كېدو دپاره بـل ګنده كار كول. څۀ معامله يا كار د اول نه نور هم زيات خرابول.

**غل تورې اوبۀ كېدل، دچا** :- (ډېر زيات ويرې اخېستل- ډېر زيات خوفزده كېدل.

**غل تپول** :- (غل دُوړَول- خرابي، غلطي يا دروغ خبرې كول.

**غل جوړول، چاته** :- (څۀ فساد يا جګړه پېدا كول- لكه: زوے مې چې چرتـه ځي نو څۀ غُل راته جوړوي.

**غل جوړول (د څۀ څيز يا كارنه)** :- (خبره يا كار خرابول.

**غُـل خـواره خـر** :- (ـــــ+خَ+وا+رَ+خَ+ر)- لكـه د خـر چې پـه ډيـران غُـل خـوري- دروغژن- د ځانه خبرې جوړوونكے.

نادان په مثل غل خوارۀ خر دے
د خوږو خـوند دے ورځنې لرې (خوشحال)

**غل خور** :- (ـــــ+خو+رْ-[اپ تر-صف-ج:خواره]- كنايةً: دروغژن- د ځانه خبرې جوړونكے. (۲) چُغلي خوړونكے- چغلخور.

**غُـل خـورګي** :- (ـــــ+خو+ر+ګي)-[اپ تر-اس-مـو]- كنايـةً: دروغ ګويي. (۲) د ځانه خبرې جوړونه. (۳) بكواس- لاپې وهنه.

**غُل خوره** :- (ـــــ+خَ+وَ+رَ-[اصف-مو-ج:رې]- د (غُل خور) تانيث دے.

**غُل خوړل** :- (۱) دروغ وئيل- د ځانه خبرې جوړول. (۲) چغلي خوړل.

**غل دُوړول** :- (وـــــ غُل خوړل

**غُـل خوشـايه** :- (پ تر-اس-ج]- (۱) غـل او سوټې- ګنـدګي. (۲) ګنده او سخا شوي څيزونه. (۳) بېهوده او خوشې خبرې.

**غُل كول** :- (۱) لوے بول كول. (۲) د بې عزتۍ يا بې همتۍ كار كول. د شرم كار كول. (۳) كار خرابول.

**غُل كول، په تالي كښې** :- (محا- چې د چا خوري ښنكې هم هغۀ سره بد كول- خپل محسن سره بد كول- نمك حرامي كول.

**غل كول، دچا په خولۀ كښې** :- (د كوم كار په حقله بېخي انكار كول.

**غل كول، دويرې** :- (ډېر زيات وېرېدل.

**غل لړل** :- (۱) كنايه: د بې شرمۍ او بدنامۍ كاركول. (۲) وـــــ په غُلو كښې ډكې وهل.

**غُل نه اخلي** :- (جُمله) وـــــ غُل به وركړم.

**غُل نۀ كېدل- دلوړې** :- (ډېر زيات اوږے «بودل».

**غل ور په خولۀ كول** :- (جمله)- وـــــ غُل په خولۀ كښې وركول.

**غل ورتلل** :- (۱) د لويو بولو كولو حاجت پېښېدل. (۲) بهانه جوړول. (۳) متـل دے: چې زمونږ وار راشي نو نوچۍ له غل ورشي.

**غل هم خوړل او مېنوكه هم څنډل** :- (بد كار هم كول او دغې بد كار نه خپله كركه هم څرګندول. كارغۀ غل هم خوري او مېنوكه هم څنډي. (متل)

**غل** :- (غُ+لْ-[ف-اس-مذ]- شور- زوږ- غوغا. په پښتو كښې يوازې نۀ راځي، بلكې شور وغيره سره يو ځاے راځي.

**شورو غُل** :- (شو+رو+ـــــ)-[ف تر-اس-مذ]- شور زوږ- غوغا- شورشار.

**غُل** :- (غُ+لْ-[ع-اس-مذ]- (۱) هغه حلقه چې د (مجرم وغيره) په غـاړه كښې اچولے شي. (عموماً د وسپنې وي- خو د لرګي يا د څرمنې وغيره هم كېدې شي). (۲) زنځير- هَتكړۍ. عموماً غل و زنځير يوځاے راځي. خو په پښتو كښې ئې استعمال كم دے.

**غلا** :- (غَ+لا-[اس-مو-ج:ګانې-وې] د څۀ څيز پټونه- دزدي.

**غلا په زړۀ كښې** :- (پـه زړۀ كښې ټګي- پـه ظاهره يو رنګ په باطن كښې بـل رنګ. (متل) په خولۀ لالا په زړۀ كښې غلا!

**غلا څرګندېدل** :- (پټ راز ښكاره كېدل- ټګي ښكاره كېدل.

**غلا غلتي** :- (ـــــ+غُ+لُ+تي)-[اپ تر-اس-مو]- د غلا دزدۍ وغيره كال- غلاملا.

**غلا غوندک** :- (ـــــ+غو+نْ+دَ+كْ-[اپ تر-صف-مذ-مو:ه]- غلچك- غلچکے.

**غلا كول** :- (څۀ څيز پټول- دزدي كول.

**غلا كوونكے** :- (ـــــ+كَ+وُو+نْ+كَے)-[اپ تر-اس-فا-مذ-ج:كي]- غـل- دُزد.

**غلا كېدل** :- (د چا نه څۀ څيزونه يا مال وغيره په غـلا تلـل- مال وغيره پـه پټـه وړلې كېدل. لكه: بېګاه فلاني غلا شوې ده.

**غـلا ګـر** :- (ـــــ+ګَ+رْ)-[اپ تر-اس-مو:ه]- غـلا كوونكے- غـل- دزد- چـالاك غل.

**غلا ګرکے** :- (ـــــ+ګَ+رْ+كَے)- د «غلاګر» تصغير دے.

**غلانيول** :- (۱) د غـلا ثبوت پيدا كـول- (۲) ټګي معلومـول- فريب معلومـول- راز معلومول.

**غلانيولې كېدل** :- (ټګي ښكاره كېدل- دوكه بازي د چا څرګندېدل- پټ راز ښكاره كېدل.

**په غلا تلل** :- (۱) په پټه تلل- (۲) په پټه (مال دولت وغيره) وړلے كېدل.

**په غلا كښې نيول** :- (په جرم كښې نيـول- مجرم بـودل- (عموماً د نفي پـه شكل

کښې استعمالېږي. لکه: په غلا کښې خو دې نۀ يم نيولې)

**په غلا وړل** :- (په پټه وړل- پټول.

**د اوښانو غلا په ټيټه کول** :- (د داسې کار پټولو کوشش کول کوم چې نۀ شي پټېدے- ناشونے کار کول.

**د زړۀ غلا** :- (په زړه کښې پټه خبره- د زړۀ پټ مقصد.

**د زړۀ غلا ښکاره کول- څرګندول** :- (په زړۀ کښې چې کوم مقصد چا پټ ساتلے وي هغه بل ته ښکاره کول- راز ښکاره کول.

**د زړۀ غلا ښکاره کېدل- څرګندېدل** :- (د زړۀ پټ راز يا مقصد څرګندېدل.

**د غلا خبره** :- (پټه خبره- د راز خبره.

**د غلا خبره نۀ ((بودل))** :- (پټه خبره نۀ «بودل» راز نۀ «بودل». لکه: دا خو څۀ د غلا خبره نۀ ده!

**د غلا شيان- مال** :- (ـــ+شَ+يا+نْ- هغه څيزونه کوم چې د چانه په غلا وړلے شوي وي.

**د غلا نه پس (وروستو) څوکېدار نيول** :- (د نقصان نه پس د حفاظت انتظام کول- په صحيح موقع کار نۀ کول- بې موقعې کار کول.

**غلات** :- (غُ+لا+تْ)-[ع-مذ]- د «غالي» جمع ده. هغه فرقې کومې چې په انساني وجود کښې د خدا ے پاك راتلنه (اوتاري) يا دتناسخ قائله دي.

**غلاټے** :- (غُ+لا+ټے)-[صف-اس-مذ-ج:ټي]- غلاوې- وېرندوکے- ډارن- ټرو- بزدله.

چې د ټُورو په برېښنا ئې وار خطا شي
مــــور ئې مه وې په هغۀ غلاټي لنګه (يونس)

**غلاظت** :- (غ+لا+ظَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) غټوالے- پېړوالے- ټينګ والے. (۲) پليتي- پليدي- ګندګي- نجاست- ناپاکي.

**غلاف** :- (غ+لا+فْ)-[غ-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) د بالښت يا دبل کوم داسې څيز برنے کپړه- پوشش- هره هغه کپړه چې بل کوم څيز پکښې نغښتے شوے وي. (۲) د توري تېکے. (۳) د ماشوم د سوخې د سر څرمن کومه چې د سنت په وخت ترې پرېکولې شي.

**د کعبې غلاف** :- (عف تر-اس-مذ)- هغه خاص طور سره تيار شوي توره کپړه- کومه چې د کعبې په عمارت باندې کال په کال (د حج په موقع) اچولے شي.

**غلافي** :- (غ+لا+فِي)-[عف تر-صف]- (۱) هغه چې غلاف سره تعلق لري. غلاف- پوشش ته منسوب. (۲) غلاف واله- هغه څيز چې غلاف يا پوشش لري.

**غلام** :- (غُ+لا+مْ)-[ع-اس-مذ-ج:ان]- (۱) مرئيے= په بيعه اخستے شوے هلك يا سړے- هغه سړے چې د کافرو سره په جنګ کښې بندي شوے وي او بيا په وېش کښې د چا په برخه رسېدلے وي- برده. (۲) هلك- زلمے. (۳) مجازاً نوکر- خدمت ګار- تابعدار- (۴) بې بيعې نوکر- نيازمند- عقيدتمند- هغه سړے چې اصلاً غلام نۀ وي. خو د خپلې عقيدې يا نمك پرورۍ له کبله ځان ته د چا غلام وائي. (۵) د تاش په پاڼو کښې يوه خاص بت واله پته- کومه چې بي بي(ماتکه) نه کمه او د نورو ټولو پاڼو (پتو) نه زيات قيمت واله ګڼلې شي. (۶) د ګنجفې د لوبې يوه بازي يا رنګ. (۷) د نارينه ؤ په نومونو کښې د خدا ے د رسول يا د نورو بزرګانو نوم سره راځي.

**غلام بارګي** :- (ـــ+با+رَ+ګي)

**غلام پارګي** :- (ـــ+پا+رَ+ګِي)-[عف تر-اس-مو]- لواطت- کوني توب ګانډوتوب.

**غلام باره** :- (ـــ+با+رَ)

**غلام پاره** :- (ـــ+پا+رَ)-[عف تر-اس]- کوني- ګانډو- لواطت کوونکے.

**غلام باري** :- (ـــ+با+رِي)-[و ـــــ غلام باره]

**غلام زاده** :- (ـــ+زا+دَ)-[عف-تر-اس-ج:ګان]- (۱) د غلام زوے- هغه چې پلار ئې مرئے وي. (۲) د عاجزۍ او انکسار دپاره خپل زوي ته هم وائي. (خصوصاً چې چا لوے سړي ته د وړاندې کولو په وخت).

**غلام زادګي** :- (ـــ+زا+دَ+ګي)-[عف-تر-اس-مو]- د غلام نه پېدا کېدۀ- د غلام اولاد «بودنه»)

**غلام فروش** :- (ـــ+فُ+رُو+شْ)-[عپ تر-صف-مذ-مو:ه]- غلام خرڅوونکے- د غلامانو تجارت کوونکے- برده فروش.

**غلام کول** :- (مص تر)- غلام جوړول- مرئيے جوړول- مجازاً چا سره داسې ښېګړه کول چې هغه ئې تابعدار شي.

**غلام کېدل** :- (مص تر)- (۱) غلام جوړېدل- په غلامۍ کښې راتلل- مرئيے کېدل. (۲) تابع کېدل- تابعدار کېدل- فرمانبردار کېدل.

**غلام ګردش** :- (ـــ+ګَ+رْ+دِ+شْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) په کور کښې د زنانه ؤ او د ديوان خانې ترمېنځه دېوال يا پرده. (۲) د زنانه او د مردانه بېټك ترمېنځه چت کړې لار- چې دواړه ځبله جدا کوي- (۳) برانډه- د کور يا د بنګلې نه چاپېره دالان. (چې عموماً نوکران وغېره پکښې ناست وي)

**بې بيعې غلام** :- (عپ تر-اس-مذ)- هغه غلام يا مرئيے چې قيمت ئې نۀ وي ورکړے شوے. مفت لاس ته راغلے غلام. (عموماً بل ته د خپلې تابعدارۍ د څرګندولو دپاره وئيلے شي).

**زرخريد غلام** :- (زَ+رْ+خَ+رِي+دْ+ـــ)-[عپ-تر-اس-مذ]- د زرو په بدل کښې اخستے شوے مرئيے- په بيعه اخستے شوے غلام.

**غُلامانه** :- (غُ+لا+ما+نَ)-[عف تر-صف]- د غلام په شان- دغلام هسې د مرئيانو په رنګ- دمرئيانو په انداز.

**غلامانه ذهنيت** :- (ـــذِ+هْ+نِي+يَ+تْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]- د غلامانو په شان ذهن لرنه- د غلامانو په شان عادت خصلت- د غلامانو په شان سوچ فکر.

**غلام قادر** :- (غُ+لا+مْ+قا+دِ+رْ)-[اس-مع]- يو روهيله (پښتون) سردار- چې په ډيلي ئې قبضه وکړه- نو د مغل بادشاه شاه عالم ثاني سترګې ئې وښکلې خو بيا مرهټه سردار سينديهيا دۀ سره هم د دې نه زيات بد سلوك وکړ. (۱۷۸۸ کښې مړ شۀ)

**غلام محمد خان پوپلزے** :- (د پښتو يو ښۀ شاعر د هشنغر چارسدې اوسېدونکے يو ډېر روښن خياله سړے- د حالي مسدس ئې په پښتو کښې ترجمه کړے دے. د حال (ترتيب اولاد) ئې هم د (پلار او زوي قصه) د عنوان تر لاندې ترجمه کړې ده.

**غلامول** :- (غُ+لا+مَ+وُ+لْ)-[امص] (۱) غلام جوړول- مرئيے کول. (۲) په غلامۍ نيول.

**غلامي** :- (غُ+لا+مَ+ی)- د «غلامي» اضافي او مجروري وغېره مغيره شکل دے.

چې نۀ څوك پېژني نۀ دې څوك پېژني
دا عرفان عين په غلامۍ کښې دے (سعيد خټك)

**په غلامۍ کښې قبلول** :- (د غلام په حېثيت قبلول. عموماً د انکسار په طور وئيلے شي. لکه چې څوك خپل زوے د استاذ په حواله کوي- يا ناوې سخر خواښې ته حواله کوي- چې دا د يو مرئي په طور تاسو ته سپارم. د

نوكر كېدو په وخت هم وائي.

**د غلامۍ دور** :- (ـــــ+دَو+رْ)-(۱) هغه زمانه كومه چې د چا په مرئي توب كښې تېره شي. (۲) هغه زمانه چې يو قوم دبل قوم زورور قوم د حكم او بادشاهۍ لاندې تېره شي. د پستۍ او ذلت زمانه.

**د غلامۍ طوق** :- (هغه حلقه چې يو غلام ته په غاړه كښې اچولے شي. (پخوا به دا د يو غلام نخښنه ګڼلې شوه). د غلامۍ غړوندے.

**د غلامۍ طوق په غاړه كول** :- (۱) غلام كېدل- مرئے كېدل. (۲) خپل اختيار بل له وركول- ځان دبل په واك كښې راوستل. دبل محكوم كېدل.

**غلامـــي** :- (غُ+لا+مـــي)-[عــف تــر-اس-مــو]- (۱) مرئيتـــوب- اګـــروالے. (۲) حلقــه بګوشــي- بنــدګي. (۳) اطاعــت- فرمــانبرداري- تابعــداري. (۴) محكومي- ماتحتي.

**غلاوزه** :- (غُ+لا+وَ+زَ)-[اس-مو-ج:زې]- (۱) د شهدو مچى- غلوزه. (۲) هغه غوا چې څۀ قدرې يې په خپله غولانځه كښې پټ كړي- يعنې ټول يې مالك له نۀ وركوي.

**غــــلاوڼ** :- (غُ+لا+وُ+ڼْ)-[اس-صـــف-مـــذ-مـــو:ه]- (۱) غُــــل كــــوونكے. (۲) كنايه: وېرندوكے-يرېدونكے- ټرو- بزدله. (۳) كنايه: نالائقه.

**غلبازے** :- (غَ+لْ+با+زَ+ے)-[اس-مذ]- د پرتو غابن د اچولو سُورے. د بدې سورے.

**غلبله** :- (غَ+لْ+بَ+لَ)-[ف-اس-مو-ج:لې]- شورشار- شور زوږ- (۲) په مستۍ كښې د مرغانو چغار.

**غلبله جوړل** :- (۱) شور فرياد پورته كول- فرياد غوغا جوړول. شور زوږ جوړول. (۲) افراتفري جوړول.

**غلبله كېدل(په كلي وغېره)** :- (حمله كېدل- افراتفري جوړېدل- لكه: په كلي غلبله شوه د ډم نايي ښۀ شوه (متل)

**غلبلې** :- (غَ+لْ+بَ+لې)-[اس-مو-ج]- (۱) د ((غلبله)) جمع ده. (۲) د ((غلبله)) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شكل دے.

**غلبه** :- (غَ+لَ+بَ)-[ع-اس-مو-ج:غلبې]- (۱) غالب كېدنه- زورور كېدنه. (۲) برے- فتح- سوبه.

**غلبه كول** :- (۱) غالب كېدل- برے موندل. (۲) حمله كول. يورش كول

تور زاغـــان كه غلبـــه كړي په باز باندې
باز په تېښته ارزان نۀ شي زاغ ارزان دے (حافظ)

**غلبه موندل** :- (ـــــ+مُو+نْ+د+لْ)

**غلبه ميندل** :- (ـــمِي+نْ+د+لْ)- برے موندل- فتح موندل- بريالے كېدل- سوبه موندل.

**غلبېل** :- (غَ+لْ+بې+لْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- د اوړو يا د نورو څيزونو د چاڼولو اله- چاڼ- غربال.

**غلبېل غلبېل** :- (۱) د غلبېل په شان سُورے سُورے. غار غار. (۲) مجازاً: زخمي زخمي- سوُرے سُورے.

**غلبېل غلبېل كول** :- (۱) سُورے سُورے كول- غار غار كول- (۲) ډېر زيات زخمي كول- ډېر زيات زخمونه جوړول.

**غلبېل غلبېل كېدل** :- (۱) غلبېل په شان سوري سوري كېدل. غار غار كېدل. (۲) ډېر زيات زخمي كېدل- ډېر زيات زخمونه (په بدن كښې) جوړېدل.

**غلبېل كول** :- (۱) د غلبېل په شان سُوري جوړول- سوُرے سُورے كول (۲) ډېر ځايه زخمي كول.

د ښو په نــاوكيو دې غلبېل كړ
ښښانه مې ورته ځان دے كله ؤ (خوشحال)

**غلبېل كېدل** :- (۱) د غلبېل په شان سُورے سُورے كېدل- سوري سوري كېدل. (۲) مجازاً د غلبېل د سُورو په شان ډېر ځايه زخمي كېدل- ډېر زيات زخمي كېدل.

چې دې درست صورت غلبېل شي په اغزيو
وخــــــوړ مــــه شه د هغـــــې وتـــې ثمر (رحمان بابا)

**په غلبېل كښې اوبۀ ايسارول** :- (ناممكنه كار كول- ناشونے كار كول.

**غلبېلول** :- (غَ+لْ+بې+لَ+وُ+لْ)-[مص]- چاڼول- چاڼول- چاڼ كول. (۲) د غلبېل په ذريعه د اوړو وغېره نه كاڼي او بُوس وغېره جُدا كول. (۳) د مائع څيز نه د چاڼ په ذريعه كاڼي يا نور كثيف څيزونه جُدا كول

**اوبۀ غلبېلول** :- (كنايه: عبث او بې فائدې كار كول- فضول او خوشې كار كول.

**غلبېلونه** :- (غَ+لْ+بې+لَ+وُ+نَ)-[حمص]- د غلبېلولو عمل- چاڼونه. چڼونه.

**غلبېلوونكے** :- (غَ+لْ+بې+لَ+وُ+نْ+كَے)-[اس-فا-مذ-ج:كي]- چاڼونكے چاڼ كوونكے- مائع څيز صفا كوونكے.

**غلبېلېدل** :- (غَ+لْ+بې+لې+د+لْ)- د غلبېل په ذريعه چاڼ كېدل- لكه د اوړو نه بوس وغېره جُدا كېدل- د مائع څيز د چاڼ په ذريعه صفا كېدل.

**غلبېلېدنه** :- (غَ+لْ+بې+لې+دَ+نَ)-[حمص]- غلبېل كېدنه- چاڼېدنه. چڼېدۀ. د اوړو وغېره نه د چاڼ په ذريعه صفا اوړه او بوس وغېره ځېله جدا كېدنه- د مائع څيز نه د چاڼ په ذريعه كاڼي، شګه جدا كېدنه.

**غلبېلېدونكے** :- (غَ+لْ+بې+لې+دُو+نْ+كَے)-[اس-فا-ج:كي]- چڼېدونكے- چاڼ كېدونكے- صفا كېدونكے.

**غلبېلېدۀ** :- (غَ+لْ+بې+لې+د)-وـــــــ غلبېلېدنه.

**غلتي** :- (غُ+لْ+تي)-[اس-مو]- (۱) غلط- دوكه- ټګي- فرېب. په لويه وغېره كښــې ټګــي كــول. (۲) عمومــاً ((غــلا)) ســره يوځــاے راځــي. يعنــې ((غلاغلتي)).

**غلجى** :- (غَ+لْ+جَ+ى)- د ((غلجے)) تانيث دے. وــــ غلجے.

**غلجے** :- (غَ+لْ+جَے)-[اس-مع-ج:جي]- د پښتنو يوه مشهوره او لويه قبيله. وـــ غلزے.

**غلچه** :- (غَ+لْ+چَ)-[اس-مذ-ج:ګان]- احمق- كم عقل.

**غلـــزي** :- (غَ+لْ+زي)-[اس-مع-ج:زي]- د پښتنو د يوې مشهورې قبيلې ((غلزے)) سره نسبي تعلق لرونكي- دوي ته ((غلجي)) هم وائي.

**غلـــزے غلجـــے** :- (غَ+لْ+زَ+ے)-[اس-مع]- د پښتنو يوه لويه قبيله ده. د افغانستان او پاكستان په خاوره خوارۀ دي- د دوي اهمې او غټې غټې قبيلې يا ښاخونه دادي: هوتك- توخي-ناصر- خروټي اندړ- تركي- علي خېل- سليمان خېل- شنوار- دينارخېل- ملا خېل- مياخېل- او وردك ځيني خلك پكښې په پاكستان كښې مستقل طور سره اباد شوي دي. د دوي بله نامه غلجي هم ده. (ج اكثره په (ز/ځ) بدلېږي)

**غلشكه** :- (غَ+لُ+شْ+كَ)-[اس-مو-ج]- دل- غټ غټ ټكولي شوي غنم چې پخولے شي- چې دغې پوخ شوي خوراك ته هم دل وائي. اتوب- درغستلي- ګوري- ګېرګيره (غنم)

**غلشكه** :- (غَ+لْ+شْ+كَ)-[اس-مو-ج:كې]- مكبز- ناز- نخره- غنج.

**غلط** :- (غَ+لَ+طْ)-[ع-صف]- د صحيح ضد دے. هغه كار، خبره يا څيز چې صحيح او درست نۀ وي. نادرسته- غېر صحيح- خطا.

**غلط بياني** :- (ـــــ+بَ+يا+ني)-[عف-تر-اس-مو]- غلط بيان وركونه- غېر

صحیح بیان ورکونه- رښتیا حال نهٔ وئیل- د واقعي یا د حقیقت نه خلاف بیان کول- دروغ وئیل.

**غلط پوهېدل** :- (په پوهېدلو کښې غلطي کول- د خبرې غلطه معنٰی یا مطلب اخېستل.

**غلط په لاس نیول** :- (غلط کار په لاس اخېستل- غلط کار شروع کول.

هر سړے چې په لاس ونیسي غلطه

زمــانه ورتـــه پیدا کا ډېر سخطه (خ خ خ)

**غلط شلط** :- (ـــــ+شَ+لَ+طْ)-[ع-پ-تر-صف]- ((شلط)) د غلط تابع مهمل دے. غلط ملط- چې غلط او صحیح ګډوډ وي. یا بېخي غلط- نادرسته- غېر صحیح (عموماً د جواب په صفت کښې راځي).

**غلط العام** :- (ـــــ+(طْ+لْ)+عا+مْ)-[ع-تر-اس-مذ]- هغه غلطي کومه چې عام خلک کوي. په اصطلاح کښې د لفظ یا د جملې وغېره هغه غلط استعمال چې نهٔ یوازې عام خلک ئې کوي- بلکې د ژبې پوهانو وغېره هم په خپله محاوره یا شعرونو وغېره استعمال کړے وي. داسې قسم غلط استعمال ته غلط العام وائي او دا صحیح ګڼلے شي- ځکه وائي چې غلط العام صحیح یا فصیح وي.

**غلط العوام** :- (ـــــ+(طُ+لْ)+عَ+وا+مْ)-[ع-تر-اس-مذ]- هغه غلطي چې عوام ئې کوي- او عوام کالالعام ګڼلے شي. د کوم لفظ یا د جملې هغه غلط استعمال کوم چې جاهل، امي او شډل یا بازاري خلک کوي. داسې غلط استعمال د اعتبار وړ نهٔ ګڼلے کېږي. (د دې په مقابله کښې غلط العام وګورئ)

**غلط فهمي** :- (ـــــ+فَ+هـْ+مي)-[عف-تر-اس-مو]- غلط پوهېدنه= تېروتنه- خطا- ناپوهي.

**غلط فهمۍ کښې مبتلا کول** :- (تېرويستل- تېرباسل- خطا وېستل د صحیح او اصل مطلب په ځاے بله غلطه او غېر صحیح معنٰی یا مطلب ورښکاره کول- په تیارهٔ کښې ساتل.

**غلط فهمۍ کښې مبتلا کېدل** :- (تېروتل- خطا وتل- (د صحیح مطلب او اصل حقیقت په ځاے بله غلطه معنٰی یا مطلب اخېستل).

**غلط فهمي کېدل** :- (غلط پوهېدل- تېروتل- خطاوتل- غلطي معنې اخېستل. (د صحیح مطلب یا د حقیقت په ځاے بدلې معنې او مطلب اخېستل).

**غلط فهمي لرې کول** :- (صحیح حقیقت ورښکاره کول- د چا د ذهن نه غلط او غېر صحیح خبره اېستل- او صحیح خبره ورښکاره کول.

**غلط کار** :- (ـــــ+کا+ر)-[عف تر-صف-اس-ج.ان-(مو).ه]- غېر صحیح کار کوونکے- وران کارے- دوکه ورکوونکے.

**غلط کاري** :- (ـــــ+کا+رِي)-[عف-تر-اس-مو]- غلط کارکونه- غېر صحیح عمل کونه- غېردرست کارکونه.

**غلط ګرزول** :- (مص-تر) غلط شمېرل- غلط ثابتول- غېر صحیح ګڼل.

**غلط ګڼل** :- (غېر صحیح ګڼل- درست نهٔ ګڼل.

**غلط ګو** :-(ـــــګو)-[عف تر-صف-اس-ج.یان]- دروغ ویونکے- دروغژن- دروېغ زن.

**غلط ګویي** :- (ـــــ+ګو+یِي)-[عف تر-اس-مو]- غلطه وینا کول- دروغ وینا- دروغژني- دروېغ.

**غلط ګیري** :- (ـــــ+ګي+رِي)-[عف تر-اس-مو]- غلطي نیونه- غلطي معلومونه- طالب علمانو په پرچو کښې یا په چاپخانه کښې په چاپ شوي څیز کښې غلطي لټول او درستول.

**غلط نامه** :- (ـــــ+نا+مَ)-[عف-تر-اس-مو-ج.مې]- په کتاب وغېره کښې د غلطو چاپ شوو الفاظو فهرست- چې د دغو غلطو الفاظو وغېره په مقابله کښې درست او صحیح الفاظ ورکړے شوي وي- ځکه ((صحت نامه)) هم ورته وائي- خو ((غلط نامه)) ډېر پخوانے او عام دے.

**غلط والے** :- (ـــــ+وا+لے)-[افپ-تر-اس]- غلط توب- غلطي.

**ځان غلط ((بودل))** :- (د خپل حېثیت نه ځان اوچت ګڼل- مغروره (بودل).

زر به سم د بېلتانـــهٔ پـــه یـــوهٔ تاؤ شي

که غلط چا څخه ځان وي پخپل زور کښې (حمید)

**غلطول** :- (غَ+لَ+طَ+ؤ+لْ)-[احمص](۱) خطا کول- (په پېژندلو وغېره کښې) تېروتل.

سل درسره کښېنـــي، واړه یـــو تربل بهترې

خدائیګو که به زهٔ کړم تا په واړو کښې غلطه (خوشحال)

(۲) په غلطۍ کښې اچول- تېرویستل- (۳) په کوم کار کښې تېروتل.

**پام غلطول** :- (پا+م+ـــــ)-[توجه بل طرف ته اړول.

**غلطونه** :- (غَ+لَ+طَ+ؤ+نَ)-[احمص]- (۱) غلط کونه- خطا کونه. (په پېژندلو وغېره کښې) تېروتنه. (۲) تېرباسنه- تېریستنه- په غلطۍ کښې اچونه- په غلط (لار) اچونه.

**غلطوونکے** :- (غَ+لَ+طَ+ؤ+نْ+کَے)-[اس-فا-ج.کي]- (۱) خطا کوونکے. (په پېژندلو وغېره کښې) تېروتونکے. (۲) تېرابستونکے- په غلطۍ کښې اچونکے.

**غلطه** :- (غَ+لَ+ط)- د ((غلط)) تانیث دے. د صفت نه علاوه د اسم په طور هم استعمالېږي لکه: غلطه د ووې- ناسم کار- بې لارې کار یا خبره ناروا.

**په غلطه سر کېدل** :-(په غلطه او غېر صحیح لار روانېدل- غېر درست کار یا خبره کول.

**غلطۍ** :- (غَ+لَ+طَ+ی)-[اعپ-تر-اس-ج]- (۱) د غلطي جمع ده. (۲) د غلطي اضافي و مجروري وغېره (مغېره) شکل دے.

**غلطۍ اېستل – اباسل –یستل** :- (په عبارت وغېره غلط لیکلي شوي یا چاپ شوي الفاظ لټول. اعتراضونه کول- نقصونه اېستل- عېب جویي کول- عېبونه لټول.

**په غلطۍ کښې** :- (په غلطه- په تېر کښې- خطا کښې- په خطا سره.

**د غلطۍ ازاله کول** :- (د خپلې غلط عمل یا خبرې په بدل کښې صحیح لاره نیول- صحیح خبره کول.

**د غلطۍ رقم څکول** :- (په غلط لیك باندې د غلطۍ کرښه راښکل.

**غلطي** :- (غَ+لَ+طِي)-[اس-مو-ج.ی.غلطیانې]- د غلط په معنٰی کښې راځي- په عربۍ کښې د ((غلط)) لفظ پخپله مصدر دے او د ((خطا)) په معنٰی کښې استعمالېږي خو پښتو او اردو وغېره ژبو کښې مصدري (ئې) هم ور زیاته کړې ده.

**غلطي کول** :- (۱) تېروتل- خطا وتل- (۲) غلط کار کول- قصور کول (۳) په املا وغېره کښې غلط لفظ لیکل.

**غلطي کېدل** :- (خطا کېدل- غلط کار سرزد کېدل- قصور کېدل- غلط کار ځنې کېدل.

**غلطي لرل** :- (خطا لرل- قصور لرل- غلط والے لرل.

چې د نیت غلطي لرې بلا به ورشي

تر هرڅهٔ بده بلا غلطـــي د نیت ده (خوشحال)

**غلطیا** :- (غَ+لَ+طْ+یا)-[اس-مو]- غلطي- غلط کېدنه.

**غلطېدل** :- (غَ+لَ+طې+د+لْ)-[مص]- (۱) تېروتل- خطا کېدل. (۲) دوکه کېدل-

په فریب کښې راتلل.

**غلطېدنه** :- (غَ+لَ+طې+د+نَ-[احمص]- تېروتنه.

**غلطېدونکے** :- (غَ+لَ+طې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-ج:کي]- غلط کېدونکے- تېروتونکے- خطا وتونکے- غلطي کوونکے.

**غلطېدهٔ** :- (غَ+لْ+طې+د)-[و_____ غلطېدنه]

**غلغله** :- (غَ+لْ+غُ+لَ- د ((غلغل)) بدل شکل دے. عموماً په مجروري وغېره ترکیب کښې استعمالېږي.

مرتبه د هغه باغ څهٔ پاتې نهٔ وي
چې خالي دي د بلبلو له غُلغله (خوشحال)

**غلغله** :- (غ+لْ+غُ+لَ-[ف-اس-مو-ج:لې]- (۱) شور زوږ- شورغوغا. چغېږه- شورماشور- غربېږ. غربېږ (۲) شهرت- درز.

**غلغله پورته کېدل** :- (۱) شور زوږ پورته کېدل. (۲) شهرت موندل.

**غلغله کېدل** :- (شور ګډېدل- شهرت موندل- مشهورېدل.

یا مهدي ئې یا عیسٰی چې رابښکاره شوي
په جهــان دې غلغلــــه شوه نـــاګـــاهه (خوشحال)

**غلکے** :- (غَ+لْ+کَے)- د ((غل)) تصغیر دے.

**غلکے سیے** :- (ـــــ+س+یَے)- په غلا خوراك كونكے سيے.

په مثا لکښې غلکے سیے دے
په کتـــوه ورنـــور تـــــوره (خوشحال)

**غلګۍ** :- (غَ+لْ+ګ+ۍ)- د غلګے تانیث دے.

په کړکیو کښې دې ډېر زړونه پراتهٔ دي
په دا دوو زلفـــــو د زړونو ئې غلګۍ (خوشحال)

**غلګے** :- (غَ+لْ+ګ+ے)-[اس-مذ-ج:ګي]- د ((غل)) تصغیر دے. وړوکے غل.

**غلمان** :- (غِ+لْ+ما+نْ-[ع-اس-مذ]- د ((غلام)) جمع ده. (۱) هلکان- هغه هلکان چې لا ډېره بربت ئې نهٔ وي شوي. (۲) هغه ښکلي پاك هلكان چې په جنت کښې به د جنتیانو خدمت کوي.

**غلمانه** :- (غَ+لْ+ما+نَ-[اس-مو-ج:نې]- د غلې د کېښودو کوټه- انبار خانه.

**غلمي** :- (غَ+لْ+مي)-[اس-جم]- یو قسم وابښهٔ دي.

**غلمے** :- (غ+لْ+مَے)-[اس-مذ]- یو ځنګلي بوټے دے- چې د جامو د وینځلو دپاره پکارولے شي.

**غلمینه** :- (غَ+لْ+مي+نَ-اس-مو-ج:نې]- غنمینه- د غنمو ډوډۍ.

**غلن** :- (غُ+لْ+ن)-[صف-مذ-مو:ه]- غُل کونکے. مجازاً وېرندوکے.

**غلنۍ** :- (غَ+لْ+نَ+ۍ)-[اس-مو]- د مرغ هومره يوه ابي مرغۍ ده. د اوبو په غاړو او جبو کښې موندے شي.

**غلو** :- (غ+لو)- د ((غلهٔ)) (جمع) اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل دے.

**په غلو غل لګېدل** :- (د حرامو مال په حرامو ځاے لګېدل- مفت راغلے څیز د لاسه وتل.

**دغلو سره لار لرل** :- (د غلو سره سازباز ساتل.

**غلو** :- (غَ+لو)- د ((غلي)) اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل دے. لکه: د غلو ګودام.

**غُلو** :- (غُ+لُ)- د ((غل)) اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل.

**په غلو اوړېدل-اوستل** :- (د بدنامۍ یا د تاوان په کار کښې را ګېرېدل.

**په غلو کښې تیلي یا ډکي وهل** :- (د غلو بد بوي خورول. مجازاً معامله یا تنازعه زیاتول- معامله ګنده کول.

**په غلو لړل** :- (بدنامه کول- رسوا کول.

**په پردو غلو ټېزونه اچول** :- (د بل چا د میراني په کار فخر یا لویي کول- دبل چا په کارنامه خپله لویي ښرګندول.

**دغلو ټوکرۍ** :- (د بدنامۍ ګوډے- بې غېرته او بې همته سړے. خراب او د بدنامۍ کارونه کونکے.

**دغلو خوراک ته راوستل** :- (و_____ غل ور په خولهٔ کول)

**دغلو ډېرۍ** :- (خراب او د بدنامۍ ځاے.

**دکال روژه په غل ماتول** :- (د ډېر زیات انتظار نه پس هم نتیجه خرابه وریښېدل.

**غلو** :- (غُ+لُ+وْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) د حد نه تجاوز کونه- ډېر زیاته مبالغه. (۲) د علم معاني په اصطلاح ښې د مبالغې هغه قسم ته وائي چې د ویونکي مدعا د عقل او عام عادت نه بهر وي.

**غلو کول** :- (بې کچه زیاته مبالغه کول- دومره مبالغه کول چې نهٔ ئې عقل مني او نهٔ په عمل کښې راتلے شي.

**غلوا** :- (غُ+لْ+وا)-(۱) فریاد. (۲) زیاتے- غلو.

چې همېش ئې په عالم کا
د جهـــان ګـــوره غلوا (خوشحال)

**غلوځه** :- (غ+لَو+ځَ-[اس-مو-ج:ځې]- د شاتو مچۍ. غلوځه

که په رنګ لکه غلوځه هسې روغ دے
د خـــوږو هیلـــه و مه کړه له غوباړي
(خوشحال)

**غلوڅه** :- (غّ+لَو+سَ)-[اس-مو-ج:څې]- د شاتو مچۍ.

**غلوله** :- (غُ+لُو+لَ-[اس-مو]- و____ ګلوله.

**غلهٔ** :- (غَ+لَ-[اس-ج]- د ((غل)) جمع ده.

**غلهٔ اوښان** :- (ـــــ+اُو+شا+نْ-[اس-مذ]- د یوې لوبې نوم دے. چې په دوو ډلو (ټیمونو) کولے شي د پټ پټونې په شان کولے شي.

**غله** :- (غَ+لَ-[اس-مو-ج:غلې]- د ((غل)) تانیث دے. لکه: چرګه چې غټېږي هاؤ ته غله کېږي. (متل)

**غله** :- (غ+لَ-[ع-اس-مو-ج:لې]- دانې- غله- د زمکې هغه پېدوار چې د دانو په شکل کښې پېدا کېږي. او دغه دانې د بني ادمو (او مرغو وغېره) خوراك وي. لکه: غنم- جوار- اوربشې وغېره.

**غله خوړل** :- (غَ+لَ-د ((غل)) مجروري وغره (متغیر) شکل دے. لکه اے غله!

**غله** :- (غُ+لَ- تکیه کلام دے. (غالباً ګله! بدل شکل دے) عموماً ((غولے)) (غ+وَ+لَے) وئیلے کېږي.

**غلهنے** :- (غُ+لَ+نَے- [اس-مذ-ج:نې]- د اوبو مرز- د اوبو کرك.

**غلې** :- (غَ+لې)-[اس-مو-ج]- (۱) د ((غله)) جمع. (۲) د ((غله)) اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل.

**غلۍ** :- (غّ+لَ+ۍ)- د ((غلي)) بدله لهجه (وزیر)

**غلۍ پلۍ** :- (ـــــ+پَ+لَ+ۍ)-[اپ-صف]- غلے پلے- خاموش. غلۍ پلۍ په کونه کښې ئې خلې. (متل- وز)

**غلي** :- (غ+لي)- (۱) د ((غلے)) جمع ده. (۲) د ((غلے)) اضافي او مجروري وغره (متغیر) شکل دے.

**غلي لېوان** :- (ـــــ+لې+وا+نْ-[ق-اس-مذ]- د یوې لوبې نوم دے چې ((ګانې کړپ)) هم ورته وائي.

**غلے** :- (غ+لَے)-[اس-صف-ج:لي]- (۱) چپ- خاموش. (۲) پټ- په ساؤ كښې خاموشه.

**غلے توب** :- (ـــ+تو+بْ)-[اس-مذ]- خاموشي- چپتيا. پټېدنه- ساؤ كښې كېدنه.

**غلے شه** :- (جمله)- د قهر په وخت يا دبل سړي د چپ كولو دپاره وئيلے شي- چې تۀ چپ شۀ. تۀ پكښې خبره مه كوه. لكه: تۀ غلے شه!

**غلے غزے** :- (ـــ+غُ+زَے)-[اپ-تر-صف]- هغه كس چې غلے او سست پست ښكاري.

**غلے غليا** :- (ـــ+غُ+لْ+يا)-[اپ تر-اس-مو]- بېخي خاموشي- چپه چپتيا- بالكل سكون- قلاره قلاري.

**غلے كښېناستل** :- (كښېناستل- خاموش كښېناستل- ځان ګونګ كول.

**غلے كول** :- (۱) چپ كول- خاموشه كول. (۲) اواز وركول. (۳) لاجواب كول- په بحث كښې پاتې راوستل.

**غلے كول، ځان** :- (ځان پټول- ساؤ كښې كښېناستل.

**غلے كېدل** :- (مص تر)- (۱) خاموشه كېدل- چپ كېدل. (۲) شور بس كول- دباؤ كښې راتلل- جوش كمېدل. (۳) په كوم ګوټ يا غار وغېره كښې (چاته) پټ كښېناستل. (۴) په بحث وغېره كښې پاتې راتلل.

**شور فساد غلے كول** :- (۱) د شور اوازنه په قلارول. شور كمول. (۲) شر او فساد كمول يا ختمول.

**غلے غچے** :- (غ+لَے+غ+چَے)-[صف-مذ]- (۱) هغه دغه- موافقت نه لرنه. (۲) وــــ غلے غزے.

**غلېب** :- (غِّ+لې+بْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- دوكه- فرېب.

**غلېب خوړل** :- (دوكه خوړل- دوكه كېدل. فرېب خوړل.

**غلېب كښې وړل** :- (دوكه وركول- فرېب وركول.

نن خو دې په غلېب كښې علي خان غوندې سل يوړۀ

نۀ پــوهېږم ګانــده به په سپين مېدان د چـــائـې (علي خان)

**غلېب وركول** :- (دوكه وركول- فرېب وركول.

**غلېچ** :- (غِّ+لې+چْ)-[صف-مذ-مو:ه]- قومي- توانا- طاقتور.

**غلېظ** :- (غِّ+لِې+ظْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- (۱) ټينګ- (۲) غټ- پېړ- پېرړ. (۳) ګنده- ناپاكه- پليد- پليت- خيرن خيچن.

**غلېلاك** :- (غ+لِې+لا+ك)-[اس-مذ-ج:ونه]- ګڼه ګوڼه د خلكو- د اولس هجوم.

**غليم** :- (غَ+لِې+مْ)-[اس-مذ-ج:ان-(مو):ه]- دښمن- دښمن.

په بخځه د خپل ايمان باندې بېدار شه

ځـــان ساته لـــــه غليمــــانو په پهره (خواجه محمد)

**غليم كېدل** :- (دښمن كېدل- دښمني اختيارول.

هر چې زۀ ئـــې يار كړمه اخر زما غليم شي

نور به په دنيا كښې اشنايي نۀ كړم بې ځايه (خ محمد)

**غليمانه** :- (غَ+لِې+ما+نَ)-[اف تر-صف]- د غليم په شان- د دښمن په طور- مېرځمن.

**غليمه** :- (غَ+لِې+مَ)-[اس-مو-ج:اني]- د ((غليم)) تانيث دے. دښمنه. دښمنه.

**غليمي** :- (غَ+لِې+مي)-[اس-مو]- دښمني- دښمني- مېرځي- مېرځمني.

**غليواج** :- (غَ+لِې+وا+جْ)

**غليواز** :- (غَ+لِې+وا+زْ)-[ف-اس-مذ]- ټپوس- (مشهور مردار خور مارغۀ)

غليواز چـــې هنر نۀ لري ازاد دے

باز په دوارو پښو بندي دے له هنره (خوشحال)

**غليـواز** :- (غَ+لِې+وا+ز)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]- ټپوس- مښګېرك- (مشهور مردار خور مارغۀ دے) (وائي چې دا مارغۀ شپږ مياشتې (يا كال) نر وي بيا د شپږو مياشتو (يا د كال) دپاره ښځه شي)

كه ئې سل ځله د زانو په خپل ګټه كړې

مـــرده مـــــړك ته به نظر كا غليواز (سعيد)

**غم** :- (غَ+مْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) د خوشحالۍ يا دخوشۍ ضد دے. خفګان- رنځ- ملال. (۲) سوګ- ماتم. (۳) فكر- اندوه. (۴) بندوبست- انتظام.

اے تل په غـــم د روزۍ غمناكه

كله ئې څوك پرېښول بې خوراكه (سعيد)

**غم اباد** :- (ـــآ+با+دْ)-[ف تر-اس-مو]- د غم كلے- هغه ځاے چرته چې ډېر زيات غم وي.

چې د عشق په غــم اباد يم دېره شوے

نور مې هېڅكله ښادي د وجود نشته (حميدبابا)

**غم انګېـز** :- (ـــ+اَ+نْ+ګې+زْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- غم را ولاړوونكے- فكر اندوه پېدا كونكے.

**غم پېښېدل** :- (مص-تر)- (۱) غم دوځارېدل- تكليف يا مصيبت پېښېدل. (۲) خپل رشته دار مړكېدل.

**غم تراش** :- [عف-تر-صف-مذ-مو:ه]- غم تراشوونكے- غم پرې كونكے- غم كمونكے.

په غمزو په كرشمـــو په مكېزونو

فرح بخشي غم تراشي دلنوازي (خوشحال)

**غم خانه** :- (ـــ+خا+نَ)-[عف-تر-اس-مو-ج:نې]- هغه كور يا ځاے چې غم لري. د ماتم كور- ماتم كده.

**غم خوار** :- (ـــ+خْ+وا+رْ)- غم خور- غم خوړونكے- غم شريك- همدرد

دغه عشق دے دغه عقل

دغه غم دے دا غمخوار (رحمان بابا)

**غم خواري** :- (ـــ+خّ+وا+رِي)-[وـــــ غم خوري]

**غم خوري** :- (ـــ+خو+رِي)-[عف-تر-اس-مو]- غم خوړنه- دبل په غم كښې شريكېدنه- بل سره همدردي- خواخوږي.

**غم خوري كـول** :- (غم خوړل- دبل په غم كښې شريكېدل- دبل په دُوك درد كښې همدردي كول- خواخوږي كول.

**غم خوړل** :- (حمص-تر)- زړۀ خوړل- د څۀ كار په فكر كښې زړۀ خوړل. غم كول- فكر اندوه كول.

**غم رسيده** :- (ـــ+رَ+سي+دَ)-[عف-تر-صف]- هغه چې غم ور رسېدلے وي- غم وهلے- غمژن- چې دوك درد يا څۀ مصيبت ور پېښ شوے وي.

**غم زيلے** :- (ـــ+زَ+پ+لَے)-[فپ-تر-صف-مذ-ج:لي]- (۱) غم وهلے. غم خراب كړے- غمزده. (۲) مصيبت زده.

**غم زده** :- (ـــ+زَ+دا)-[عف-تر-صف]- غم زيلے- غم وهلے- ډېر غمژن.

نۀ به ښاد تل په ښادۍ كښې د وربربړي

نــۀ بــه تــل غمزده هســـې وي د ژم (سعيد)

**غم ژړل** :- (د كوم تكليف يا د مصيبت نه فرياد كول- يا ئې بل ته ذكر يا شكايت كول.

**غم ژن** :- (ـــ+ژ+نْ)-[وــــــ غم زده]

**غم شـريك** :- (ـــ+شَ+رِي+كْ)-[عپ تر-صف-مذ-مو:ه]- په غم كښې شريكېدونكے- په غم كښې چاسره ګډون كوونكے. همدرد- غم ګسار.

**غم شریکي** :- (ف پ تر-اس-مو]- په غم کښې شریکېدنه- په غم کښې همدردي.

**غم ښادي** :- (ـــ+ښا+دي)- غم او ددې ضد خوشحالي. مرګ تکلیف مرض وغېره او د دې په مقابله کښې واده، کوژدن او راحته او ارام ښهٔ وخت او بد وخت یا ښهٔ حال او بد حال.

غم ښادي ورور خور دي. (متل)

په ښادۍ ئې هیڅ ښاد مه شه که دانا ئې
غـــم ښادي ددې دهر ځنګ په ځنګ (رحمن بابا)

**غم ښادي سره تړلي دي** :- (جمله)- په بني ادم هر رنګه حال راځي. کله غم او کله خوشحالي.

غم ښادي سره تړلي دي له ځایـه
هغه هونبره به وژاړي څو وویاړي (خوشحال)

**غم ښادي شریکه ((بودل))** :- (د نزدې متعلق ((بودل)). د نزدې رشته داري او خپلولي ((بودل)). چې په هر قسم حالاتو کښې د یو بل سره یوځا ے کېږي.

**غم ښادۍ کښې شریکېدل** :- (د غم په وخت کښې چاسره همدردي کول- او په واده ښادۍ کښې شریکېدل. په ښه او بد حالت کښې چاله تلل او تعلق ساتل.

**غم غرض** :- (ـــ+غَ+رَ+ضْ)-[عپ تر-اس]- توجه- مدعا- مقصد.

په غافــل د سحر ګــرې حب غالب شهٔ
غم غرض ئې د محبوب په غبغب نهٔ دے (حافظ)

**غم غرض کول** :- (عموماً د نفي په صورت کښې استعمالېږي. و ـــــ غم غرض نهٔ کول.

**غم غرض نه کول په چا** :- (د چا په کار یا معامله کښې دخل نهٔ ورکول بې غرضه او لاتعلقه پاتې کېدل.

**غم غړول** :- (۱) غم تېرول- غم برداشت کول- غم زغمل-(۲) غم غوځول. (۳) غم ختمول- معامله ختمول. د کومې معاملې فېصله کول.

**غم غړېدل** :- (غم غوځېدل- د کوم کار یا د معاملې فېصله کېدل.

**غم غلط** :- (ـــ+غَ+لَ+طْ)-[عف-تر-اس-مذ]- (۱) هغه څیز، کار چې پرې د زړهٔ نه کمولے یا لرې کولے شي. غم لرې کوونکے. تفریح- سیل- تماشه. (۲) شراب وغېره- نشه. (۳) ساز- موسیقي.

**غم غلطول** :- (مص-تر)- د غم اثر کمول- غم هېرول- داسې کار کول چې پرې د زړهٔ غم هېر یا کم شي.

**غم غلطي** :- (ـــ+غَ+لَ+طِي)-[عپ تر-اس-مو]- غم غلطول- د غم نه پام (په څهٔ کار شغل وغېره) په بل طرف اړونه. د غم د هېرولو کوشش یا شغل.

**غم غلطېدل** :- (مص تر)- غم هېرېدل- غم کمېدل- فکر د غم په ځا ے بل خواته متوجه کېدل- داسې وغېره چې غمژن سړے په کښې بوخت شي او فکر ئې د غم د خبرې نه بل خوا واوړي.

**غم کښ** :- (ـــ+کَ+ښْ)-[عپ-تر-صف-مذ-مو:ه]- غم زغمونکے- غم تېروونکے.

**غم کول** :- (مص تر)- (۱) فکر کول- زړهٔ خوړل- اندوه کول- افسوس کول- (۲) ماتم کول- سوګ کول- نول کول. (۳) فکر کول- بندوبست کول- انتظام کول.

**غم کښېښول (په چا)** :- (په غم اخته کول.

هم په څو رنګه غمونه باندې کښېږدې
بیا ګیلـــه له دې غمـــژنه کوې ښهٔ! (خوشحال)

**غم ګال** :- (ـــ+ګا+لْ+لْ)- غم په ځان تېرول- غم برداشت کول- غم زغمل.

**غم ګسار** :- (ـــ+ګُ+سا+رْ)-[عف تر-صف-مذ-ج:ان]- غمخور- غم شریك- همدرد- په دُك درد کښې همدردي کوونکے.

سیاره مـــې غم ګساره یاران نهٔ شو
په وصال ئې مسرور نهٔ کړم له جانانه (حافظ)

**غم ګساره** :- (ـــ+ګُ+سا+رَ)-[عف تر-صف-مو-ج:رې]- د غمګسار تانیث دے.

ښې ښې دلبرې د دین یاراني وي
په دا دنیا کښې غم ګساراني وي (خوشحال)

**غم ګساري** :- (ـــ+ګُ+سا+ري)-[عف تر-اس-مو]- په غم کښې شریکېدنه- غم خوري- همدردي- غم شریکي- په دُك درد کښې همدردي.

**غم ګین** :- (ـــ+ګي+نْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- غمژن- غمزده- غم وهلے- فکرمند- اندوهګین- نول ژن- د فکر نه ډك.

**غم ګین ((بودل))** :- (خفه ((بودل))- په غم کښې ((بودل))- ملول ((بودل))- غمژن ((بودل))

**غم ګین کېدل** :- (غمژن کېدل- خفګان راتلل- په خفګان کېدل- اندوهګین کېدل.

**غم ګیني** :- (ـــ+ګي+نِي)-[عف تر-اس-مو]- غمژني- فکرمندي- انوه ګیني- خفګان- نول.

**غم لړلے** :- (ـــ+لَ+ړ+لَے)-[غپ تر-صف-اس-مذ-ج:لي]- په غم لړلے شوے- ډېر زیات غمژن.

**غم لنډول** :- (غم غوځول- د کومې تنازعې یا جګړې فېصله کول.

**غم لېدل** :- (غم ورپېښېدل- غم ور دو ځارېدل.

جدایي مه راولې خدایه!
ما چېرې غم لیدلے نهٔ دے مړ به شمه (ټپه)

**غم ناك** :- (ـــ+نا+كْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- و ـــــ غمګین.

اے تل په غـــم د روزي غمناکه
کله ئې څوك پرېښنو بې خوراکه (سعید)

**غم ورکېدل** :- (غم نهٔ پاتې کېدل- بې غمه کېدل.

د پیاده حافظ به غـــــم د لاړې ورك شي
که ئې وصل که سپاهیان و خپل فتراك ته

**پردے غم** :- (هغه غم چې دبل په سر وي- یا د بل په زړهٔ تېرېږي- چې تاؤ ئې هم هغهٔ ته رسي. (۱) پردے غم نیم اختر وي. (متل)
(۲) پردے غم د واورو سوړ وي. (متل)

**په غم اخته کول** :- (په غم کښې ګېرول- څهٔ مصیبت یا تکلیف ور دوځارول.

که څوك غواړي چې خپل زړهٔ په غم اخته کا
اشنایـــي ده لاس پــــه لاس فتنــــه تیاره (خوشحال)

**په غم شریك** :- (هغه کس چې غم سره وویشي- دردمند- په غم غمژن- په غم یا تکلیف او مصیبت کښې ملګرتیا کونکے.

یوه په غم شریك یار نهٔ ونیم په ملك کښې
خلــك تشي تسلي کاندې پــــه خــولهٔ (خوشحال)

**په غم ګنډلے** :- (ـــ+ګَ+نْ+ډَ+لَے)-[اپ تر-اس-مف-مذ-ج:لي)- په غم لړلے- په غم کښې اخته.

په غم دې زړهٔ ګنډلے ګرځم
په خوشحالۍ دې نور عالم مزې کوینه (ټپه)

**په غم لړلے** :- (ــــ+لَ+ړ+لَے)- ډېر زيات غمژن.

په غم پيدا په غم کښې لوے شوم
په غم لړلې ياراني سترې دې کړمه (ټپه)

**غماز** :- (غَ+مْ+ما+زْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- (۱) چغل خور- غمازي کونکے- چغلي خوړونکے. (۲) دښمن- عدو- بدخواه.

**غماز کېدل** :- (چغلي خوړل- غمازي کول.

سکه له دې خبرې هسې معلومېږي
خپل اواز دے هـــــر سړي لره غماز (رحمان بابا)

**غمازي** :- (غَ+مْ+ما+زي)-[عف تر-اس-مو]- چغلي- چغل خوري.

**غمازي کول** :- (چغلي خوړل- چغل خوري کول- پشي شا بد وئيل.

**غمباده** :- (غَ+مْ+با+دَ)-[اس-مو-ج:دې]- د ګېډې پړسېدنه (چې د غم او فکر په وجه په ګېډه کښې باد پيدا شي).

**غمبورے** :- (غُ+مْ+بُو+رَے)-[او ـــــ غمبوړے]

**غمبوړے** :- (غُ+مْ+بُو+ړَے)-[اس-مذ-ج:ړي]- بارخو- اننګے.

**غمچه** :- (غُ+مْ+چَ)-[او ـــــ غنچه]

**غمچين مار** :- (غَ+مْ+چِي+نْ+ما+ر)-[اس-مذ]- د مارانو يو قسم- چې وړوکے وي او په تېزۍ سره ټوپونه وهي.

**غمچينه** :- (غَ+مْ+چِي+نَ)-[اس-مو-ج:نې]- غمچين- چابك- متروکه. تازيانه.

**غمر** :- (غُ+مْ+ر)-[اس-مذ]- زعفران- ګانګو- ګنګو.

**غمز** :- (غَ+مْ+زْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) اشارت (د سترګې يا د وروځې) چشمك- سترګک.

**غمزه** :- (غَ+مْ+زَ)-[ع-اس-مو-ج:زې]- (۱) د سترګې يا د وروځې اشارت- سترګه وهنه- وروځې وهنه- چشمك. (۲) ناز- نخره- کېږ- مکېږ- عشوه- رمز- کرشنه- کنج.

د غمزې طاقت دې نۀ لرم دلبره
زۀ هر ګوره ډېر عاجز يم ناتوانا (خواجه محمد)

**غمزه کول** :- (۱) ناز نخره کول- کېږ مکېږ کول- عشوه کول- کرشنه کول. (د معشوقې په حقله وئيلے شي) (۲) په سترګه (يا په وروځه) اشاره کول.

**غمزه ګر** :- (ــــ+ګَ+رْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- (۱) غمزه کونکے په سترګه (يا په وروځه) اشاره کونکے. (۲) نازنخره کونکے. کېږ مکېږ کونکے. کرشنه کونکے. (د معشوقې په حقله وئيلے شي).

د معشوقې تورې سترګې غمزه ګرې
په غـــــزل کا لکــــــه سترګې د غزال (خ خ خ)

**غمزه ګري** :- (ــــ+ګَ+رِي)-[عف تر-اس-مو]- په سترګو يا په وروځو اشارت کونه- نازنخره کونه- کېږ مکېږ کونه.

**غمژن** :- (غَ+مْ+ژَ+نْ)-[صف-مذ-مو:ه]- غمجن- غم وهلے- غمګين- غم زده.

**غمژن والے** :- (ــــ+وا+لَے)

غمژن والے دې په څۀ وي
بيا په څۀ شي هسې ښاد (خ خ خ)

**غمژنول** :- (غَ+مْ+ژَ+نَ+و+لْ)-[احمص]- غمژن کول- غم وروستل- په غم اخته کول- غم وهلے کول- خفه کول- دُك- درد- تکليف- مصيبت وررسول.

**غمژنېدل** :- (غَ+مْ+ژَ+نې+د+لْ)-[مص]- په غم کښې ګېرېدل- غم راتلل- فکر مند کېدل- غم کول. په کوم تکليف يا مصيبت کښې ګېرېدل.

**غمور** :- (غَ+مَ+وْ+رْ)-[صف-مذ-مو:ه]- غم واله- غم ناك- غمژن- ډېر مغموم.

نادان ښادي خو د پېنځو شپو ويني
در پيش ئــــــې عمر تل غمور دے (سعيد ختك)

**غمول** :- (غَ+مَ+وْ+لْ)-[مص]- (۱) غم وروستل- غمژن کول. (۲) تکليف، مصيبت يا ازار رسول.

**غمـول** :- (غَ+مَ+وْ+لْ)-[مص]- اوړدول- خبره اوږدول- خبره ځنډول- ملتوي کول.

**غمولے** :- (غَ+مَ+وْ+لَے)-[اس-مف-مذ-ج:لي]- سترے ستومانه کړے تنګ کړے شوے.

**غموم** :- (غُ+مُو+مْ)-[ع-اس-ج]- د (غم) جمع ده. غمونه.

**غمونو** :- (د (غمونه) اضافي او مجروري وغيره (متغير) شکل دے.

**د غمونو باران** :- (ــــ+با+را+نْ)- ډېر زيات غمونه.

**د غمونو باران پرې ورېدل** :- (ډېر زيات غمونه او فکرونه وغيره (په چا) راتلل.

**د غمونو سېلي را الوتل** :- (مجازاً ډېر زيات غمونه او فکرونه وغيره په چا راتلل.

**د غمونو جاله** :- (ــــ+جا+لَ)- هغه کس چې بې کچه ډېر غمونه او فکرونه پرې راغلي وي يا ورله راځي- په ډېرو زياتو غمونو او فکرونو کښې ګېر.

**غمونه** :- (غَ+مُو+نَ)- د (غم) جمع ده.

**غمونه ژړل** :- (وـــــــ غم ژړل)

**غمونه ګالل** :- (غمونه برداشت کول- غمونه زغمل- په ځان غمونه تېرول.

**غمونه وړل** :- (خپل يا د بل غم په ځان برداشت کول.

**پردي غمونه ژړل** :- (د نورو خلکو د مصيبتونو يا تکليفونو فکر کول.

**يو جهان غمونه** :- (يَو+جَ+ها+نْ+ــــ)- ډېر زيات غمونه.

**غمونـه** :- (غَ+مَ+وْ+نَ)-[احمص]- غمژن کونه- دُك درد يا تکليف رسونه- ازارونه.

**غموونکے** :- (غَ+مَ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- غمژن کوونکے- تکليف رسوونکے.

**غمه** :- (غَ+مَ)-ځنو مغيرهٔ تورو سره د (غم) دا شکل استعمالېږي.

ما وې د غمه به دې مړ شم
قسم دے يار به بې نښتې نشته مرګونه (ټپه)

**د غمه خوب نۀ ورتلل د چا** :- (د چا د پاره دومره فکر مند کېدل چې خوب ئې وتښتي. (عموماً د نفي په شکل کښې طنزاً استعمالېږي. لکه: هغه له خو بس ستا د غمه خوب نۀ ورځي. (مطلب دا چې هغۀ سره ستا د کار فکر نشته)

**غمے** :- (غَ+مے)-[اس-مذ-ج:مي]- ډېر قيمتي کاڼے خصوصاً هغه قيمتي کاڼے چې پر بکرې (جوړ کړے) شوے وي. او په ګوته وغيره کښې لګولے شي- نګين- نګينه. (دا داسې لفظ دے چې هم ريشه لفظ ئې په مشرقي اريايي ژبو کښې نشته. البته په لاطيني کښې د دې هم ريشه لفظ موجود دے. په انګريزۍ کښې دا لفظ د جيم (Gem) شکل کښې دے خو د اصل لاطيني لفظ پښتو ته ډېر ورته دے. د تعجب او د توجه وړ خبره داده چې دا لفظ د پيرنګيانو زمونږ هېواد ته د راتلو نه ډېر اګاهو په پښتو کښې موجود وۀ- دا د پښتو د قدامت يو لوے ثبوت دے. (تخليص د خيال بخاري د مقالې څخه).

**غمېدل** :- (غَ+مې+د+لْ)-(۱) غمژن کېدل- غم پېښېدل. (۲) تکليف رسېدل.

**غمېدل** :- (غَ+مې+د+لْ)-[مص]- اوږدېدل- ځنډېدل- خبره ځنډېدل.

**غمېدلے** :- (غَ+مې+د+لَے)-[اس-مذ-ج:لي]- (۱) غمژن شوے- غمګين شوے. (۲) هغه چې څۀ دوك درد، تکليف يا مصيبت ور رسېدلے وي.

**غمبدنه** :- (غَ+مبِ+د+نَ-[احمص] - (۱) غمژن کېدنه- په غم کښې ګېرېدنه- اندوهګين کېدنه. (۲) ستړے کېدنه- تنګېدنه.

**غمېدونکے** :- (غَ+مبِ+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي] - (۱) غمژن کېدونکے- غمناك کېدونکے. (۲) تکليف يا دوك درد موندونکے.

**غمېدۀ** :- (غَ+مي+د)-[و______ غمېدنه]

**غمين** :- (غَ+مي+نْ)-[و_____ غمګين]

**غمين** :- (غَ+مي+نْ)-[اس-مذ] - غمے-

ديو به سلېمان، د سلېمان پــه غمين نۀ شي

خر به تازي اس په برګستان او په ذين نۀ شي (حافظ)

**غنا** :- (غَ+نا)-[ع-اس-مو-ج:ګانې-وې] - (۱) غنـي کېـدل- حاجت نـۀ پـاتې کېدل. (۲) دولتمندي- شته منې- مالداري.

په ساعت کښې ئې افلاس وي

پــه ساعت کښې ئـــې غنا (رحمان بابا)

**خپله غنا ګڼل** :- (خپله ازادي ګڼل.

**غنا** :- (غِ+نا)-[ع-اس-مو-ج:ګانې-وې] - نغمه- سندره- راګ.

**غناره** :- (غَ+نا+رَ)-[ق-اس-مو-ج:رې] - يـو غرئيـز بـوټے دے چې درې ښاخونه لري- او هر يو ښاخ بيا په نورو دريو څانګو تقسيم شوے وي.

**غنا شکي** :- (غَ+نا+شْ+کي)-[اس-مو] - (۱) د اوبو ورو ورو بهېدنه. (۲) د بند نه د اوبو لږ لږ راڅڅېدنه.

**غنائم** :- (غَ+نا+ئِ+مْ)-[ع-اس-ج] - د ((غنيمت)) جمع ده.

**غنايي** :- (غِ+نا+يي)-[عف تر-صف] - غنا سره تعلق لرونکے- سندرو وغېره تـه منسوب. په سُر سره د وئيلو وړ. لکه: غنايي شعرونه.

**غنبسه** :- (غُ+نْ+ب+سَ)-[پ-اس-مو-ج:غنبسې] - مچۍ- مشهوره لشې والـه الوتونکې حشره.

وړې مچــۍ ئــــې وګنم د شهدو بې ازاره

لشې راڅوخې کا د سرو غنبسو ګک وخېژي (حافظ)

**غـنج** :- (غُ+نْ+جْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه] - (۱) د سترګو وروځـو اشـاره. (۲) نـاز- نخره- کېڅ مکېڅ- ادا.

هونبره ډېرې خر خشې فتنې جنګــونه

بيا به وائې چې زۀ ستا غنجونه کم وړم (خوشحال)

**غنج کول** :- (نازنخره کول- ادا کول- کېڅ مکېڅ کول.

**غنج وړل** :- (ناز و ادا وړل- کېڅ مکېڅ برداشت کول- نازنخرې پورته کول.

**غنج** :- (غَ+نْ+جْ)-[اس-مذ-ج:ونه] - غوندي- لويه بوجۍ.

**غنجالے** :- (غَ+نْ+جا+لَے)-[اس-مذ-ج:لي] - بانې چغ- شاډينګه- دنګ د تېزۍ (سورلۍ) خوړلو مشهوره اله. چې په زمکه کښې يو مضبوط اوږده ستن ښخه کړي د دې د سر دپاره يو وړوکے شان چورليدونکے لرګے وي. ددې لرګي په دواړو سرونو بـرغ پـړے تـړلے وي، چې جينکۍ پـه دغـو پـړو کښېنې او په تېزۍ سره د دغې ستنې نه چاپېره منډه وهي. دغـه شان برنے لرګے په چورلېدو شي او جينکۍ پرې ښۀ شيبه وخځانګي. (ځينې بانې چغونه څلور پړې هم لري- يعنې په يو وخت څلور جينکۍ هلکان پرې زانګلے شي).

**غنجولې** :- (غَ+نْ+جُو+لَ+ې)-[و_____ غنجالے]

**غنجي** :- (غَ+نْ+جي)-[اس-مع] - د ((زرکون)) خلکو يـوه قبيلـه ده. چې پـه سبي (بلوچسـتان) کښـې ئـې مېشـه لرلـه. د غنجيـو څـانګې دادي:

اوړيازی او ملك زی.

**غنځرکے** :- (غُ+نْ+ز+رْ+کَے)-[اس-مذ-ج:کي] - نوے زېږېدلے چېلے.

**غنچـه** :- (غُ+نْ+چَ)-[ف-اس-مـو-ج:چې] - (۱) غـوټۍ- کلـۍ- شـګوفه. (۲) د معشوقې خولۀ- (تشبيهاً وئيلي شي).(۳) جومپك- يوځاے ګڼ ځېزونه. (۴) د نارينه ؤ او زنانه ؤ په نومونو کښې راځي.

**غنچه خولې** :- (ـــــ+خُ+لې)-[و_____ غنچه دهن]

**غنچه دهن** :- (ـــــ+دَ+هَ+نْ)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه] - د غنچې (غـوټۍ) پـه شـان خولۀ لرونکے- د معشوقې خولې له د ګل د غوټۍ سره د تشبيهه په طور وئيلے شي.

**غنچه لب** :- (ـــــ+لَ+بْ)-[و_____ غنچه دهن]

**غنچه وار** :- (ـــــ+وا+رْ)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه] - د غنچې په څېر- د غنچې په شان- د غوټۍ په شان.

فراغت به ئې پسندلے وي که نۀ وي

غنچه وار به مسېدلے وي که نۀ وي (حميد)

**غنچه واکېدل** :- (د غوټۍ سپړدې کېدل- د کلۍ نه ګل جوړېدل.

**غنچه واکېدل د زړۀ** :- (د زړۀ غوټۍ پرانستې کېدل- د زړۀ خوشحالېدل- زړه تـه خوشحالي رسېدل.

د دانـــا زړونـــو غنچې به پرې واکېږي

د هر حرف معنٰی ئې عين لکه نسيم دے (سعيد)

**ناشـګفته غنچـه** :- (نا+شَا+ګُ+فْ+تَ+ـــ)-[عـف تـر-اس-مـذ] - (۱) ناسپړدې غـوټۍ- بنده کلۍ. (۲) مجازاً- جينۍ (چې لاواده شوې نه وي) دوشيزه- بکره.

**غنچې** :- (غُ+نْ+چې)-(و_____ غنچـه)- (۲) د ((غنچـه)) اضـافي يـا مجـروري وغېره متغيره شکل.

**غنچې غنچې** :- (ـــــ+غُ+نْ+چې)-[پ تـر-صـف] - ګلګـوتې ګلګـوتې چـې د خوشبو په شان وي. (عموماً د څنو په صفت کښې وايه شي).

الله دې بيا راته محتاج کا

غنچې غنچې څنې مې بيا په مخ راځينه (ټپه)

**د غنچې واکېدل** :- (د غوټۍ سپړدې کېدل- د غوټۍ يا د کلۍ نه ګل جوړېدل.

**د غنچې مُسېدل** :- (د غنچې سپړدې کېدل.

**غندل** :- (غَ+نْ+دَ+لْ)-[اس-مـو-ج:لې] - (۱) د سبزۍ وغېره شين کچه ډانډې. (د شين کچه ډانډې سره د معشوقې مرۍ له تشبيهه هم ورکولے شي). (۲) نوې ټوکېدلې پاڼه ګۍ وغېره. (۳) د سپېرږو په مېنځ کښې دېوال چې دواړه سپېږمې ځېله جدا کوي. د پوزې ستن يا دېوال.

**غنده غاړه** :- (ـــــ+غا+ړَ)-[پ تـر-اس-مـو] - د غندلو پـه شـان اوچتـه او نازکـه غـاړه (مـرۍ) ښـکلې اوږده مـرۍ- د صـراحي پـه شـان غـاړه. (عمومـاً د معشوقې يا د محبوب اوږدې مرۍ د تشبيهه دپاره استعمالېږي).

**غندل** :- (غَ+نْ+د+لْ)-[اس-مذ] - غنـے- صـحرايي غـټ زهرنـاك جـولا- غـونډل- غوندي- ښيخ (مروت) کوکے (ځدران)

**غندل** :- (غُ+نْ-دَ-لْ)-[امص] - بد وئيل (د چا)- د چا بد ګويي کول. مذمت کول.

چې و يـارو ته مـې تل غندي رقيبه

څۀ په دا به د يار مهر له ماکم کړے (خوشحال)

**غندلے** :- (غَ+نْ+دَ+لَے)-[اس-مف-مذ-ج:لي] - چې د چا بد وئيلي شوي وي- مذمت کړے- په بدو ياد شوے.

**غندنــه** :- (غَ+نْ+دَ+نَ)-[احمـص] - بـد وئيـل- (د چـا)- مـذمت کـول- ذم (د

ستاينې ضد)

کــه همــــه خلک ئــې سر شي په غندنه
بېچاره خوشحال په خپل هنر خوشحال دے (خ خ خ)

**غندو** :- (غَ+نْ+دُو)-[وـــ غندلے]

**غنــدونکے** :- (غُ+نْ+دُو+نْ+کَـے)-[اس-فـا-مـذ-ج:کـي]- بـدويونکے- مـذمت کوونکے.

**غندوے** :- (غَ+نْ+دُ+وے)-[اس-مو]- يو قسم سبزي ده- خوراکي- چې مزه ئې لږه ستغه وي. سرغندوے- هلم.

**غنکۍ** :- (غَ+نْ+کَ+ی)-[وـــــ غنکے]

**غنکے** :- (غَ+نْ+کَ)-[اس-مذ-ج:کي]- تبچه- د لرگي يوه آله ده چې تقريباً نيم فټ اوږده وي- سر ئې د پيالۍ غوندې وي. د دې د پاسه پسته څرمن يا د ربړ ټکړه ترلې شي کله چې دغه راښکلے ربړ په گوتو وهلے شي نو د ماده مږ په شان اواز ترې پيدا کېږي. دا د مږزانو د نيولو دپاره غږولے شي او مږزان ئې په اواز جال په لور راوستے شي. غنکے- کرکرۍ.

**غنگ** :- (غُ+نْ+گْ)-[اس-صوت]- (۱) د دات (فلز) د څهٔ څيز د پريوتلو يـا بـل څيـز سره د جنگېدلو اواز- ټنگ- ټنگهار. (۲) هغه اواز چې د غـر يـا د گنبد نه بيرته راگرځي- ازانگه- انگې- ژونگ.

**غنگا** :- (غَ+نْ+گا)-[وـــــ غنگ]

**غنگورے** :- (غَ+نْ+گُو+رَے)-[اس-مذ-ج:ري]- د غوږ نرمه- د غوږ لاندينۍ پسته برخه.

**غنگهار** :- (غَ+نْ+گَ+ها+رْ)-[اس-موت]- د ((غنگ)) مسلسل اواز. [وـــ غنگ.]

**غنگے** :- (غُ+نْ+گَے)-[وـــــ غنکے]

**غنم** :- (غَ+نْ+مْ)-[اس-جم]- مشهوره غله- گندم.

**غنم پلور** :- (پ تر-اس) غنم خرڅونکے.

**غنم رنگ** :- (ـــ+رَ+نْ+گْ)-[اپ تر-صف]- د غنمو په شان رنگ لرونکے- د بنې ادم د مخ يو رنگ- چې نهٔ سپين وي او نهٔ سور- د دواړو ترمېنځه رنگ.

غنم رنگ مخ ئې گلدان وۀ
نهٔ د چــــا پـــه شبه شان وۀ (حافظ)

**غنم رنگے** :- (ـــ+رَ+نْ+گَے)-[اپ تر-صف]- (۱) د غنمو په شان رنگ لرونکے. [وـــــ غنم رنگ] (۲) يو قسم غرئيـز بـوټے دے چې د ځـاروو خـوراک دے.

**غنم غونے** :- (ـــغُو+نَے)-[اپ تر-صف]- د غنمو په شان رنگ لرونکے- گندم گون.

**غنم گره** :- (ـــ+گَ+رَ)-[اپ تر-صف-اس-ج:ري]- هغه زمکه چې غنم پکښې کرلے شي- گندم زار. (د شولگرې په مقابله کښې)

**د غنم اوږۀ** :- (ـــاو+ړ+ۀ)-[اپ تر-اس-جم]- (۱) معنې ښکاره دي. (۲) د قدر يا د کار سړے. (فلانے خو د غنم اوږۀ دي)

**غنم** :- (غَ+نَ+مْ)-[ع-اس-ج:اغنام]- گډې- بزې- د گډو رمه.

**غنم** :- (غَ+نُ+مْ)-[ع-اس-مذ]- لوټ- د شوکې مال.

**غنمين** :- (غَ+نْ+مي+نْ)-[اصف-مذ-مو:ه]- (۱) د غنمو- د غنمو هسې د غنمو په شان. (۲) د غنمو نه جوړ شوے (د خوراک څيز).

**غنمينه** :- (غَ+نْ+مي+نَ)- د ((غنمين)) تانيث دے. عموماً د غنمـو د اوړو نـه پخه شوې ډوډۍ ته وائي.

د مارۀ تر فهم هېڅ نهٔ ده غنمينه
ولـې وږي ته حلوا ده اوربشينه (خوشحال)

**غنوارے** :- (اس-صوت)- د څرخې يا د پائې د تيز چورلېدلو اواز.

**غنودگي** :- (غَ+نُو+دَ+گي)-[ف تر-اس-مو]- (۱) خوب خوب ورتلل. د خوب اثر (۲) خمار.

**غنوده** :- (غَ+نُو+دَ)-[ف تر-صف]- اودۀ- خوب وړے- خوابيده.

**غنوري** :- (غُ+نو+ري)-[اس-مذ-ج]- د لرگي نرۍ نرۍ څانگې- غنويرې.

**غنويرې** :- (غَ+نْ+وي+رې)-[اس-جم]- د څېړې- څرلنځې بنج د ونې پانې او څانگې (چې بلولې شي).

**غنــه** :- (غُ+نَ)-[اس-مـو-ج:غنــې]-(۱) هغــه بــوټې چــې ډېــر ازغــي لــري. (۲) د ازغن بوټي څانگه. (۳) نازک ازغے.

**نون غنه** :- (نُو+نْ+ـــ)-[عف تر-اس-مو]- د نون هغه غږ کوم چې د پوزې په لار را ايستے شي او د خولې طرف بند کړے شي- دا غږ عموماً د ((ن)) په شکل کښې ليکلے شي. په پښتو کښې دغه غږ د لفظونو په سر کښې هم راځي. چې د دنيا په کمو کوزو ژبو کښې داسې لېدلے شي. هـو د پښتـو د لفظونو په اخر کښې دغه توره د غنه په غږ کښې نهٔ تلفظ کېږي. بلکې پوره ((نون)) تلفظ کېږي لکه جهاں- شاهاں وغېره پوره نون سره جهان او شاهان تلفظ کېږي.

**غنـې** :- (غَ+نَ+ی)-[اصف]- (۱) غنې سره تعلق لرونکے- غنې تـه منسـوب. (۲) هغه څيز چې د غنو نه جوړ شوے وي. لکه شپول وغېره.

**غني** :- (غَ+نِي)-[ع-صف-اس-ج:ان]- (۱) شته مند- دولتمند- مالداره. (۲) حاجت نهٔ لرونکے- بې پروا- (۳) د خداے پاک يو صفاتي نوم. (۴) د نارينهٔ په نومونو کښې راځي.

**غني بادشاه** :- (ـــ+با+د+شا+ه)- لاپرواه بادشاه- خداے پاک چې بادشاه هم دے او بې پروا هم دے د چا حاجت نهٔ لري.

پروردگار غني باچا دے
مچ او انسان له روزي يو شان ورکوينه (ټپه)

**غنـي تـوب** :- (ـــ+تـو+بْ)-[عـپ-تـر-اس-مـذ]- مالـدراري- غنـي کېدنـه- دولتمندي- شته مني.

**غني خداے** :- (ـــ+خُ+دا+ئے)-[اس-مع]- د خداے نوم سره د غني لفظ چې دا هم د خداے پاک نوم دے يو ځاے راوستے شي. يعني هغه خداے چې بې پروا دے. عموماً په شعرونو يا ټپو کښې راځي.

**غني کول** :- (۱) مالداره کول- شته من کول. (۲) بې حاجته کول- بې پروا کول.

**غنې** :- [غَ+نې]-د ((غنه جمع ده.

**غنـې کــول** :- (۱) داسې کـار کـول چې چاتـه پـرې تکليف يـا نقصـان رسـي. (۲) داسې کار کول چې عاقبت ترې پخپله تکليف يا نقصان مومي.

**غنې منې** :- (ـــ+م+نې)-امنې، د غنې تابع مهمل دے. اغزن او بې اغزن- وچې څانگې او نور وچ لرگي وغېره- چې بلولے شي يا ترې شپول جوړلے شي.

**په دېوال غنې کښېښودل** :- (لار چا ته بندول- بند بز پيدا کول.

په دېوال غنې راته مه ږده
د شرمښانو لارې چا بند کړې دينه (ټپه)

**په زړۀ غنې راښکل** :- (د ډېر صبر او برداشت نه کار اخېستل.

**سوې غنې** :- (وچې او پخې غنې- د سروغنو زخم او درد نسبتاً زيات تکليف رسونکے وي.

**غنے** :- (غَ+نے)-[اس-مذ-ج:نې] - (۱) د جولا په شان يوه غټه حشره چې سخت زهرناك وي- غڼې. (۲) جولا- عنكبوت.

**غنيم** :- (غَ+نيـ+مْ)-[ع-اس-مذ-ج:ان] - (۱) دښمن- غليم- ميرځمن- ميرځن. (۲) لوټوونكے- اولجه كوونكے.

**غنيمانه** :- (غَ+نِي+ما+نَ)-[عف تر-تف] - د غنيم په شان- د دښمن هسې.

**غنيمت** :- (غَ+نِي+مَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه] - (۱) د لوټ مال- اولجه- هغه مال چې بې د څۀ محنت خوارئ لاس ته راشي. مفت مال. (۲) قدر وړ- غوره- ډېر څۀ- د استفادې وړ.

دا پښتځه ورځې ژوندون چې غنيمت دے
شكـــــرانـــه په دا نعمت د ګردګار كړه (رحمان بابا)

**غنيمت((بودل))** :- (د قدر وړ (بودل)- غوره (بودل)- ډېر څۀ (بودل). لكه: دا يو څو ورځې په ارام ژوند هم لوے غنيمت دے.

**غنيمت ګڼل** :- (مفت په لاس راغلے ګڼل- مجازاً: د قدر وړ ګڼل- فائده ترې اخېستل- فائده مند ګڼل- ډېر څۀ ګڼل.

دا څو ورځې غنيمت ګڼه په باغ كښې
چـــــې په تا باندې سينه وهي بلبله (خ خ خ)

**غنې** :- (غَ+نْ+ړْ)- د نر تناسل اله.

**غڼې** :- (غَ+نْ+ړي)-[اس-ج] - (۱) د غڼه – غڼے جمع ده. (۲) د (غڼه) يا د غڼے اضافي او مجروري وغېره (متغير) شكل.

**غڼيـه خوشـته** :- (غَ+نْ+ړي+ی+خُ+شْ+تَ)-[اس-مو] - سپين فلفل. مشهور دارو- اوړده مېربانه (قندهار)

**دغڼيـه جالـه** :- (ـــــ+جا+لَ)-[اپ تر-اس-مذ-ج:لې] - د جولاجالـه- د عنكبوت جاله.

**دغڼيـه تار** :- (ـــــ+تا+ر)-[اپ تر-اس-ج:ونه] - هغه نرے تار كوم چې جولا په خپله خولۀ جوړوي- او خپله جاله وغېره ترې جوړوي.

**تـوره غڼيـــه** :- (تـو+رَ+ـــــ)-[اپ تـر-اس-مـو-ج: تـورې غڼـې] - د جولاګـانو (عنكبوتانو) يو قسم چې تور رنګ لري.

**غڼه** :- (غَ+نْ+رَ)

**غڼے** :- (غَ+ن+ـے)-[اس-مذ-ج:ړي] - (۱) د جولا په شان يوه حشره چې ډېره زهرناكه وي. (۲) جولا- عنكبوت.

**غَو** :- (غَو)-[ق-اس-مذ] - يو قسم كباب- چې قيمه ئې د ګډې په كولمه- لري كښې وګنډي او بيا ئې په تپوده شګه كښې ښخ او پوخ كړي.

**غـــو** :- (غـــو)-[احمص] - (۱)- جمـاع- د نـر د ښـځې سـره يوځـائے كېـدل. (۲)- لواطت- د نارينـه د نارينـه سره بـد فعلـي. (۳)- د ځناورو پـه خپلـو كښې جوړه كېدنه.

**غو كول** :- (۱) مجامعت كول- كور والے كول- د نر او ښځې يوځائے كېدل- (۲) د هر ځناور نر او ماده سره يو ځائے كېدل. (۳) بد كاري كول- لواطت كول.

**غـو كېـدل** :- (۱) مجامعـت كېـدل- د نرښـځې يوځـائے كېـدل- (۲) بـد كاري كېدل- لواطت كېدل.

**په ولاړه غونۀ كېږي** :- (د هر كار يوه خپله طريقه وي.

**د ببزګانو غو جوړول** :- (كوم كار له (هېڅ بې هېڅه) ځنډ وركول. كار اوږدول.

**نياته دغو چل ښئيل** :- (د نا تجربه كار سړي تجربه كار سړي ته چل ښودل يا د دوكې وركولو كوشش كول- د پوهه او هوښيار سړي د تېرباسلو كوشش كول.

**غوا** :- (غْ+وا)-[اس-مو-ج:ګانې وې] - مشهور پې وركونكے ځناور- د غوے ماده.

**غوا لنګېدل دچا** :- (مجازاً: څۀ فائده من كار په لاس ورتلل.

**غو لوشۀ** :- (ـــــ+لْ+وَ+شَ)-[اپ تر-اس-مو-ج:شې] - هغه لوښې چې د غوا پې پكښې لوشلے شي- د پيولوټكے (يا بالټې)

**غوا وغېلے** :- (ـــــ+ؤ+غي+لے)- دغوا ؤ ګوار چې ګډې بزې هم ورسره وي- چې عموماً يوځائے څرله بوتللے شي.

چـــې ئې تل و غوا و غېلو ته نارې دي
خدائے دې واخله د بې دردو مجالسه (خوشحال)

**د غوا دوه بچي راوړل چا** :- (په ډېره ګټه يا فائده كښې بودل.

**دلنګې غوا ته** :- (د لنګې غوا د لوشلو په وخت لته زغمل. د كوم سړي نه چې چاته فائده رسي. نو د هغۀ د طرفه لږ شان تكليف هم زغملے كېږي.

**ملاسته غوانۀ پاڅول دچا** :- (كناية: چاته يو پوټې شان تكليف يا نقصان هم نه رسول.

**غوابيژے** :- (غْ+وا+بي+ژُے)-[ق-اس-مذ-ج:ژي] - يو قسم (لاړې جنه- لعاب داره) حشره چينجے مينجے چې په سپرلي كښې پيدا كېږي.

**غـوا رودونـے** :- (غْ+وا+رو+دُو+نَـے)-[اس-مـذ-ج:نـي] - د څمڅـرې يـو قسـم غارندونے.

**غواروه** :- (غْ+وا+ر+وَ)-[اس-مو-ج:وې] - د څمڅرو يو قسم.

**غواروے** :- (غْ+وا+ر+وَ+ے)-[و ـــــ غواروه]

**غواړل** :- (غْ+وا+ړ+لْ)-[امص] - غوښتل- مطالبه كول- خواست كول.

**غواړن** :- (غْ+وا+ړ+ن) -[احمص] - غوښتنه كونكے- مطالبه كونكے.

**غواړنه** :- (غْ+وا+ړ+نَ)-[احمص] - غوښتنه- خواست.

**غواړونے** :- (غْ+ړو+نَے)- غوښتونكے- مطالبه كوونكے.

**غواړه** :- (غْ+وا+ړَ)-[اس-مو-ج:ړې] - غوښتنه- طلب.

چې ژندده د مرګ بنده دے
دا مرګے ئې په غـواړه دے (ارزاني)

**غوانبن** :- (غْ+وا+نْبن)-[اس-مذ-ج:ونه] - ګوانبن.

**غوانبـكے** :- (غْ+وا+شْ+كَے)-[اس-مـذ-ج:كـي] - د سـتن سـورے- نكـه چې پكښې تار وركوي- سپم.

**غوانبل** :- (غْ+وا+نبلْ)-[امص-مت] - ګوانبل.

**غوانبېدل** :- (غْ+وا+نبې+د+لْ)-[امص-لا] - ګوانبېدل.

**غـواص** :- (غْ+وْ+وا+سْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ان-(مـو-:ه] - مرجوښا- مرجوړا غوطـه خور- غوپه مار.

**غواصي** :- (غْ+وْ+وا+سي)-[عف تر-اس-مو] - عف تر-اس-مو] - مرجوښاتوب- غوطه خوري- غوپه ماري.

**غواصي كول** :- (مص-تر)- مرجوښا توب كول- غوطه خوري كول- غُوپه ماري كول- غـوپې وهـل. د مرغلرو د رايستلو دپاره په سمندر كښې غـوپې وهل.

**غواغوچے** :- (غْ+وا+غُو+چَے)-[ق-اس-مذ-ج:چي] - يو قسم بوټے دے د پوپك په شان پاڼه- پاڼې پاڼې وي- او غټ ګل كوي.

**غواګړے** :- (غْ+وا+نبلْ)-[مص-تر] - ګوانبل.

**غواګۍ** :- (غْ+وا+ګَ+ی)-[اس-مو] (۱) د ((غوا)) تصغير- وړه غـوا- د وړوكي قد وقامت غوا. (۲) يو قسم بوټے دے چې د ګلابو په شان وي خو رنګ ئې خړ وي.

**ماما غـواګۍ** :- (ما+ما+ـــــ)-[اپ تر-اس-مو] - يوه حشره ده- چې پـه سپرلي كښې يا په بارانونو كښې په پټو پولو كښې پيدا كېږي- د وښو پيشۍ.

**غوالوشه** :- (غَ+وا+لو+شَ)-[اس-مو]- دوبې، دګې- هغه لوښے چې غوا پکښې لوشلې کېږي.

**غوانړے** :- (غَ+وا+ن+ړے)-[اس-صوت] دکوتترو هغه اواز چې زبېرګي پکښې وباسي.

**غوایـډنګ** :- (غَ+وا+یے+ډ+نګ)-[اس-صوت]- د غوا- غويي اواز- د غويي بېږی (سپينته- بجله) (ت ق)

**غواے** :- (غَ+وا+ے)-[اس-مذ-ج:غوايان]- (۱) د غوا نر- غُوَے.
(۲) کم عقل- شوده- سوډر.

**غوایۀ** :- (غَ+وا+يۀ)-[وګورئ- غواے]

**غوائي** :- (غَ+وا+يي)-[صف]- غواے سره تعلق لرونکے- غوي ته منسوب.

**غوائي توب** :- (د غوي په شان عمل کول- مجازاً: بېوقوفي- حماقت.

**غوائي توب کول** :- (حماقت کول- د بېوقوفۍ کار يا کارونه کول- ناشائسته حرکت کول.

**غوائي ژبه** :- (ـــ+ژ+بَ)-[اس-مو]- وګورئ غوائي ژبې.

**غوائي ژبې** :- (ـــ+ژ+بَ+ې)-[اس-مو]- شلخې- ګاؤزبان.

**غوائي سترګه** :- (ـــ+س+تْ+رْ+ګَ)-[پ تر-اس-مو]- دګل يو بوټے دے. (په عربۍ کښې ورته (عين البقر) وائي- د پښتو لفظ ئې ترجمه ښکاري)

**غوائي ښکر** :- (يو ډول بوټے دے.

**غوائي واله** :- (ـــ+وا+لَ)- د غويي خاوند- د غويي مالك- په غويي بارونه وړونکے.

**غوایے** :- (غَ+وا+يَے)-[و___ غوے]

**غوايان** :- (غَ+وا+يا+نْ)-[اس-مذ-ج]- د غواے- غويي يا د ((غوايه)) جمع ده.

**غوباچي** :- (غُ+با+چي)-[اس-مذ]- غوبه- اجړ.

**غوباړے** :- (غو+با+ړَے)-[اس-مذ-ج:ړي]- (۱) يو قسم غټ مچ دے چې (عموماً د سپرلي په موسم کښې) غوا غويي او نور څاروي چيچي او تنګوي ئې.(۲) مجازاً- ډېر شرارتي- شيطان.

**غواباړے لګېدل په چا** :- (اضطراب ښکاره کول- مضطرب بودل. عموماً طنزاً وئيلے شي- چې څۀ غوباړے درباندې لګېدلے دے.

**غوبانړے** :- (غو+با+نْ+ړَے)-[و____ غوباړے]

**غوبانۀ** :- (غو+با+نّ)-[اس-ج]- د ((غوبه)) (غوبون) جمع ده- د غوا غويان ساتونکي.

**غوبانه** :- (غو+با+نَ)-[اس-مو-ج:نې]- د ((غوبه)) تانيث دے. د غواؤ څرونکې- غوبنه.

په کشمالو کښې ورته پټ شوم
جينۍ د غواؤ غوبانه ده رابه شينه (ټپه)

**غوبر** :- (غو+بَ+رْ)-[اس-مذ]- شور زوږ- شورغوغا.

**غوبر پيدا کول** :- (شور شار جوړول- شورغوغا کول.

سېلاب په څو څاځکي غوبر پيدا کا
بنياد ئـــې نشته، غـــړپ په دا کا (خوشحال)

**غوبرے** :- (غو+بْ+رَے)-[اس-مذ-ج:ري]- رخسار- بارخو- اننګے- ژمبرے- غمبورے- غومبورے.

**غوبل** :- (غُـو+بَ+لْ)-[اس-مذ-ج: ونه]- (۱) په لوکړي غنمو باندې غويان وغېره ګرځول- چې ميده شي او غنم او بوس ځبله جدا شي. (۲) مجازاً د ګنو کسانو جمع کېدنه او مستي خرداڼګي کونه.

**غوبل تړل په څۀ** :- (غوبل جوړول- دل دول کول.

په سينه يو لالے ځائېږي
څۀ درمند نه دے چې غوبل به پرې ترمه (ټپه)

**غوبل جوړول** :- (د ګنو کسانو جمع کېدل او مستي خرداڼګي کول.

**غوبل جوړول په چا** :- (دګنو کسان (د چا د وهلو ټکولو دپار) يو ځاے کېدل- ډېر وهل ټکول.

**غوبل کول** :- (په لو کړي غنمو باندې غويان وغېره ګرځول چې غنم او بوس ځبله جدا شي.

**غوبل کېدل** :- (۱) د لو شوو غنمو د ډېرۍ دپاسه ګڼ غويان وغېره ګرځېدل- چې غنم او بوس ځبله جدا شي. (۲) په ګنو کسانو وهلے ټکولے کېدل.

**غوبلرګے** :- (غو+بَ+لْ+رْ+ګے)-[اس-مذ-ج:ګي]- مَوګے- هغه لرګے کوم چې د درمن په مېنځ کښې ښخ کړے شوے وي. دې سره يو څو غويان په پړه تړلي وي کوم چې په دغه درمن باندې د غوبل دپاره ددغې لرګي نه چاپېره ګرځولے شي.

**غوبلول** :- (غُ+بَ+لْ+وُ+لْ)-[مص مت] (۱) غوبل کول- د غوايانو په ذريعه د غنمو وچ فصل مېده کول او غله وېستل. (۲) وهل. په پښو پرې ګرځېدل- د پښو لاندې کول.

**غوبلېدل** :- (غُ+بْ+لې+د+لْ)- [مص-لا]- (۱) غوبل کېدل- د غوايانو په ذريعه د غنمو د وچ فصل ميده کېدل او غله وېستل کېدل. (۲) وهل کېدل- د پښو لاندې کېدل.

**غوبن** :- (غو+بُ+نْ)-[اس-مع]- د درې پلارو ځانګه ده. (درې پلاره- شېخي- ورسپن- بيټني دي.

**غوبنه** :- (غو+بَ+نَ)-[اس-مو-ج:نې]- د ((غوبه)) يا د ((غوبون)) تانيث دے. د غواؤ غويانو وغېره څرونکے او ساتونکے.

**غوبني** :- (غو+بْ+ني)-[اس-مو]- غوبه توب.

**غوبنے** :- (غو+بْ+نے)-[اس-مذ]- (۱) غوبه- غوبون. (۲) د غوبه مصغر.

**غوبون** :- (غو+بُو+نْ)-[اس-مذ]- د غواؤ غويانو وغېره ساتونکے او څرونکے.

**غوبه** :- (غو+بَ)-[و_____ غوبون]

**غوپول** :- (غو+پَ+ؤ+لْ)-[مص مت]- غوپه کول- ډوبول.

**غُوپـه** :- (غـو+پَ)-[اس-مـو-ج:پې]- غوټـه- پـه اوبـو کښـې خپـل ټـول وجـود ډوبونه. ډوب- غرق.

**غوپه خوړل** :- [و______ غوپه کېدل]

**غوپه کول** :- (څۀ څيز په اوبو کښې په زور ورښکته کول چې ټول په اوبو کښې ډوب شي- په اوبو کښې ډوبول.

**غوپه کېدل** :- (۱) د لامبو په وخت په اوبـو کښې خپـل ټول وجود ډوبـول. غوپه وهل- غوټه وهل.(۲) د څۀ مودې دپاره د چا غېببدل.

**غوپـه مار** :- (ـــ+ما+رْ)-[پ تر-صف-مذ-مو:ه]- غـوپې خوړونکے- پـه اوبـو کښې ځان ډوبونکے او را برڅېره کېدونکے.

**غوپه وهل** :- (غوټه وهل- د لامبو په وخت په اوبو کښې خپل ټول وجود ډوبول.

**غـوپې** :- (غـو+پې)-(۱) د ((غوپـه)) جمع ده. (۲) د ((غوپـه)) اضافي او مجروري وغېره (متغير) صورت دے.

**غوپې خوړل** :- (په اوبو کښې بيا بيا ډوبېدل او را برڅېره کېدل.

**غوپې ورکول** :- (په اوبو کښې بيا بيا ډوبول او راوښکل.

**دايلو بچو له غوپې ورکـول** :- (کنايةً: هوښيار سړي لـه د دوکې ورکولـو کوشش کول. پوهـ سړے تېرباسل.

**غوپېدل** :- (غو+پې+د+لْ)-[مص] - غوپه کېدل- غوټه وهل- ډوبېدل.

**غوپېدنه** :- (غو+پې+د+نَ)-[حمص] - غوپه کېدنه- غوټه وهنه- په اوبو کښې ډوبېدنه او بیا راوتنه.

**غوپېدونکے** :- (غُو+پې+دُو+نْ+کَے)-[غوپه خوړونکے- غوټه وهونکے.

**غوتی** :- (غو+تی)-[اس-مو] - د ټوپك د دارو (باروت) کڅوړه.

**غـوټ** :- (غُ+ټْ)-[اصف-مـذ-مـو:ه] - (۱) بالکـل- بېخـي- پـه قـطـ- قطعـي. (۲)تنومند- قوي.

**غوټ پرېکړے جواب** :- (۱) سکوټ جواب- مطلق جواب- داسې جواب چې پکښې دبدلون څۀ گنجائش نۀ وي.(۲) قطعي انکار- بېخي انکار.

**غوټ پرېکول** :- (بېخي پرېکول- بالکل پرې کول.

**غوټ په غوټ** :- (ـــ+غ+ټ)-[اپ تر-صف-مذ-مو: غوټه په غوټه] - ښکاره- څرگند- صریح- په ډاگه- صفا صفا- ټکي په ټکي- پورا وئیل.

**غوټ کوټ** :- (ـــ+ك+و+ټْ)-غټ- تازه.

**غوټ ماتول** :- (بېخي ماتول- بالکل ماتول- چورلټ ماتول.

**غوټ نیم** :- (ـــ+نِي+مْ)-[اپ تر-صف-مذ-مو:ه] - بالکل نیم- په قطع نیم.

**غوټکے** :- (غو+ټ+کَے)-(۱) د غوټ مصغر. (۲) غونډ منډ.

**غوټکی** :- (غو+ټ+کی)-[اس-مو] - د غوټکے مؤنث.

**غوټن** :- (غو+ټ+نْ)-[اصف-مذ-مو:ه] هغه څیز چې پکښې ډېرې غوټې وي- غوټې لرونکے.

**غوټندے** :- (غـو+ټ+نْ+دَ+ے)-[اس-مـذ-ج:دي] - غوټـه وهـونکے- غوټـه مـار- غوپه مار- غوطه زن- مرجوڼا.

**غوټو** :- (غُو+ټُو)-[اس-مذ-ج:گان] - غاړۀ- حلقوم.

**غوټول** :- (غْ+ؤ+ټَ+ؤ+لْ)-[مص-مت] - غټول- څربول- لویول.

**غوټونه** :- (غُو+ټُو+ټَ+ؤ+نَ)-[حمص] - څربونه- لویونه- غټونه.

**غوټه** :- (غو+ټَ)-[اس-مو-ج:ټې] - (۱) تړون- گره- (۲) تنې- گانټهـ (۳) مجازاً: تړون- تعلق- نسبت. (۴) (هر وړوکے شان غونډ څیز چې غټې غوټې په شان وي. لکه: د پیاز غوټه.

**غوټه اچول** :- (و ـــــ غوټه ورکول.

**غوټه اچول چاسره** :- (چا سره تړون پیدا کول- چا سره تعلق پیدا کول چا سره کلك تړون جوړول.

**غوټه اچول (رومال ته یا پیسکي ته)** :- (د کومې خبرې د یاد لرلو دپاره عموماً رومال یا د لوپټې پیسکي ته غوټه اچولې شي- چې د دغې غوټې په لیدلو دغه خبره ور په یاد بېږي. مجازاً یاد لرل.

**غوټه پرانستل** :- (۱) غوټه (گره) سپړدل- دوه ځبله تړلي څیزونه جدا کول- ازادول- (۲) مسئله حل کول.

هغـــه غـــوټـې په نظر ښکلي پرانیزي<br>چې ئې ډېر په پرانستلو لقمان دوك شي (حمیدبابا)

**غوټه پرانستل د زړۀ** :- (۱) کنایه: د زړۀ نه فکر او اندوه لرې کول- د زړۀ نه غم لرې کول. (۲) د زړۀ پټ راز څرگندول. (۳) گاټلی یا پنډوکے پرانستل. (۴) د پیسو ټکو غوټه پرانستل. مجازاً پیسې راښستل.

**غوټه پرانستلې کېدل د زړۀ** :- (کنایه: د زړۀ نه فکر او شك شبه لرې کېدل- د زړۀ غم ورکېدل.

**غوټه تړل** :- (گاټلی تړل- د گاټلی د کپړې گوټونه په خپله کښې تړل- پنډوکے تړل- دوه یا زیات څیزونه سره خپلو کښې انښلول.

**غوټه د پیاز** :- (یو ثابت پیاز.

نافه د مښك به غوټه د پیاز نۀ شي<br>پـــه ترتیب بـــه غلیاز باز نۀ شي (سعید)

**غوټه ساتل** :- (مجازاً: پنگه ساتل- پیسې ټکې یا مال محفوظول- خبره راز پټ ساتل.

**غوټه شوے** :- (ـــ+ش+وَ+ے)-[اپ تر-اس-مف-مذ-ج:ي] - (۱) هغه څیز چې تـړلے شـوے وي. غوټـه ورکـړے شـوې وي.(۲) سـخته شـوې معاملـه- انجړېدلے.

**غوټه خلاصول** :- (کنایه: تړون لرې کول- د کوم گران کار حل کول- خنډ لرې کول. گاټلی یا پنډوکے پرانستل.

**غوټه خلاصېدل** :- (کنایه: گرانه یا خنډ لرې کېدل- مخه ازاد بدل. گاټلی یا پنډوکے پرانستلے کېدل.

**غوټه کول** :- (غوټه ورکول- تړل- د غوټې (گره) په ذریعه یوځاے کول. څۀ څیز جمع کول

**غوټه کول پیسکي کښې** :- (کنایه؛ خبره یا نصیحت وغېره یادلرل. په یاداشت یا ذهن کښې ساتل.

**غوټه کېدل** :- (تړلے کېدل- د غوټې په ذریعه تړلے کېدل.

**غوټه ورکول** :- (تړل- د غوټې (گره) په ذریعه یوځاے کول- گره ورکول.

**تندے غوټه کول** :- (په تندي باندې گرونجه (یا گرونجې) گونځه پیدا کول- تندے گونځې کول- د کرکې ناخوښی یا د نفرت اظهار کول. تندے بوټول.

**غوټـه** :- (غـو+ټَ)-[اس-مـو-ج:ټې] - غوپـه- پـه اوبـو کښـې خپـل ټـول وجـود ډوبونه.

**غوټه خوړل** :- (غوپه وهل- په اوبو کښې خپل بدن ډوبول.

**غوټـه مـار** :- (ـــمـا+رْ)-[اپ تـر-صـف-مـذ-مـو:ه] - غـوټې وهـونکے- غـوپې خوړونکے.

**غوټـه وهـل** :- (غوپـه وهـل- غوپـه کېـدل- پـه اوبـو کښـې خپـل ټـول وجـود دننـه یستل.

**غوټه** :- (غو+ټَ)-[اس-مو-ج:ټې] - حمله.

په غوټه کښې ټپوس کله لکه باز دے<br>کـــه ئې خلک د منگلو څښتن بولي (خوشحال)

**غوټه کول** :- (د هوا نه حمله کول- په تېزی سره د بره نه حمله کول.

غلیواز د بل منگلـــې وته گوري<br>لکه باز لرې نژدې خپله غوټه کړه (خوشحال)

**غوټه کېدل** :-(۱) د حملې دپاره په تېزی سره په چا ورتلل- په تیزی سره حمله کول (۲) (د ښکاري مارغۀ په مرغی باندې) حمله کول- ورخلاصېدل- په تېزی سره پرې ورتلل.

**غوټه** :- (غـو+ټَ)-[اس-مـو-ج:ټې)- د جناتو پیریانو حمله- د جناتو پیریانو د حملې په وجه بې سوده کېدل.

**غوټه راتلل په چا** :- (د پیریانو جناتو د حملې په وجه بې سوده کېدل- بېهوشه کېدل- (اصلاً دا د زنانهٔ یو مرض دے).

**غوټه** :- (غَو+ټَ)-[اخداران]-[اس-مو-ج:ټې] - غوزه- جلغوزه.

**غوټـه غوړاشـه** :- (غـو+ټَ+غْ+ؤ+ړا+شَ)-[اق-اس-مـو] - ۱) سـتنه- سـتن تـار- گوتمه او داسې نور څیزونه. (۲) ناوې د جهېز سامان.

**غوټه لمنځه** :- (غْ+ؤ+ټَ+لْ+م+نْ+ځَ)-[اق-اس-مو] - یو قسم وُنه.

**غوټې** :- (غو+ټې)-[اس-مو-ج]- د ((غوټه)) جمع ده.

**غوټې سپړدل د زړهٔ** :- (کنایه: د زړهٔ پټې خبرې ښکاره کول- خپل پټ رازونه ښکاره کول- (۲) د زړهٔ پټ شکایتونه او ګیلې بیانول.

**غوټې غوټې** :- (ــــ+غو+ټې)-[پ تر-صف]- (۱) هغه څیز چې ډېرې غوټې لري- دغوټو ډك- غوټن. (۲) هغه لرګے چې هر طرف ته ډېر ځایه لکه د غوټو دانې شان لري. (۳) هغه لرګے چې په مېنځ کښې ئې د ښاخونو، څانګو د جرړو سختې غونډې حصې موجودې وي.

**غوټې غوټې کېدل** :- (۱) په څهٔ څیز کښې د غوټو په شان ځایونه ښکاره کېدل- (۲) په بدن کښې دانې یا متاکې جوړېدل. (۳) کنایه: په څهٔ معامله وغېره کښې ګرانې پېدا کېدل.

**غوټې ورکول** :- (۱) څهٔ څیز له غوټې ورکول.(۲) یوه معامله ګرانول- پېچېده کول.

**غوټې ورکول پېسوله** :- (پېسې کلکې کلکې تړل. مجازاً ډېره زیاته شومتیا کول- پېسې بېخې نهٔ لګول- د پېسې سر نهٔ پرېکول.

**پېسوله شل غوټې ورکول** :- (وــــــ غوټې ورکول پېسوته).

**پېسې ته شل غوټې اچول** :- (پېسه ډېره زیاته محفوظه ساتل- د ډېر زیات شوم سړي په حقله وایه شي.

**تندي له غوټې ورکول** :- (خفه کېدل- ناراضګي ښکاره کول.

**غوټې** :- (غو+ټې)- د ((غوټه)) جمع ده.

**غوټې خوړل** :- (په اوبو کښې پرله پسې ډوبېدل- او ترې راوتل- غوپې خوړل.

هر یو ښکلې مې په زړهٔ د باز غوټې خوري
ګوره کوم یو به ئې یوسي ښکار د چا دے (حمید)

**غوټې وهل** :- (غوټې وهل- (په اوبو کښې).

د مقصود ګوهر په لوے دریاب کښې پرېوت
غواصـــان پسې غـــوټـــې وهي په مرسته (خوشحال)

**غوټۍ** :- (غو+ټَ+ی)-[اس-مو]- کلۍ- ګل چې لا سپړدے شوے نهٔ وي.

**غوټۍ پرانستل** :- (د ګلونو کلۍ پرانستې کېدل- د غوټو ګل کېدل. (۲) د قمیص وغېره تنۍ پرانستل.

**غوټۍ پرانستې کېدل د زړهٔ** :- (زړهٔ چې د غم یا فکر په وجه تنګ او غوټۍ شوے وي. دګل په شان سپړدے کېدل- د زړهٔ نه د فکر یا غم لرې کېدل. خوشحالېدل.

**غوټۍ د نامه** :- (ــــدَ+نا+م)-[پ-تر-اس-مو]- د ګېډې دپاسه یوه غوټه شان - نوم.

**غوټۍ ګل کېدل** :- (د سپرلي راتلنه- د بلوغ او ځوانۍ ترحده را رسېدنه.

**غوټۍ ګل کېدل د زړهٔ** :- (د زړهٔ د خوشحالۍ یو کېفیت. مجازاً د اشنا یادېدل.

**د ځوانۍ غوټۍ** :- (پ تر-اس-ج)- د پېغلو جینکو واړهٔ تي- چې د غوټو په شان وي.

**د ځوانۍ غوټۍ غوړېدل – سپړېدل – ګل کېدل** :- (پېغله کېدل- ځوانېدل.

**غوټۍ** :- (غو+ټَ+ی)-[اس-مو]- د قمیص وغېره د تڼو یو پخوانے قسم چې د کپړې نه به د یوې وړې شان غوټې یا غوټۍ په شان جوړولې شوه- او په حلقه کښې به ننبلولې شوه.

**غوټے** :- (غو+ټے)-[اصف-مذ-ج:ټي]- بوڅے- بوچے- بوړے.

**غوټیالۍ** :- (غو+ټ+یا+لَ+ی)-[اصف-مو]- (۱) کنایه: پېغله- نوې ځوانه شوې جینۍ. (۲) د غارې د یو کالي نوم دے. ګلوبند.

(۳) هغه ګډه یا بزه چې په مرۍ کښې ئې غوټې وي.

**غوټیالے** :- (غو+ټْ+یا+لَے)- د غوښې هغه غوټې کومې چې د څنو کډو بزو د مرۍ لاندې اوېزاندې وي.

**غوټیالے** :- (غو+ټْ+یا+لَے)-[اس-مذ-ج:لي]- یو قسم کالے دے.

زهٔ د مستې په پېزوان باندې مئین یم
که د مخ کالي ئې غوره غوټیالي دي (خوشحال)

**غـوث** :- (غَـو+ثْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ان]- (۱) فریـاد- د امـداد دپـاره چغـه. (۲) فریاد رس- غاؤ رس- په فریاد رسېدونکے. (۳) په مسلمانانو کښې د اولیاء یوه درجه چې د قطب نه لاندې وي.

**غوث الاعظم** :- (ــــ+(ثُ+لْ)+اَ+عْ+ظَ+مْ)-[اس-مع]- د شیخ عبدالقادر جیلانيؒ لقب دے، چې پښتانهٔ ورته ((لوے ځوان)) وائي. مزار ئې په بغداد (عراق) کښې دے.

**غوثیت** :- (غَو+ثِي+ی+تْ)-[عف تر-اس-مذ]- د غوث مرتبه یا حالت.

**غوجر** :- (غَو+جَ+رْ)-[اس-مذ]- سپینه شوره (ښوره) چې د زمکې په مخ پېدا کېږي.

**غوجل** :- (غو+ج+لْ)-[اس-مو-ج:لې]- د غوا مېښو د تړلو کوټه یا ځاے- لکه: چې په غوجل دې لوے شي غابښ ئې مه ګوره. (متل)

**غوجل کول** :- (د غوا مېښو د غوجل (کوټه) نه سوټې جمع کول- چې سپیاکې ترې جوړوي.

**ګنده غوجل** :- (مجازاً: ګنده کارونه کولو واله سړے- خراب سړے. چې څوك ورنزدې شي هغه هم ګنده یعنې بدنام کړي. لکه: فلانے څهٔ ګنده غوجل دے.

**غوجله** :- (غو+ج+لَ)-[وــــــ غوجل]

**غوجو** :- (غو+جُو)-[ق-اس-مذ]- معدني قُته یا ډوغل- د درنګ ژورتیا.

**غوځے** :- (غو+زَے)-[وــــــ غوزے]

**غوځي** :- (غُ+زِي)-[اس-مو]- غېږ- کنار- غاړه.

لیا غوځي په غوځي راکه
لیا جــواب لېونــو راکه (غاړه)

**غـوچ** :- (غَـو+چ)-[اس-مـذ-ج:ونـه-(مـو):ه]- ژوره ډوغـل- کوغـالے- چوغـالے- کوندر.

**غوچ** :- (غّو+چْ)-[ق-اس-مذ-ج:ان]- ګډ-ښکرونو واله ګډ- (قوچ)

**غوچالے** :- (غَو+چا+لے)-[اس-مذ-ج:لي]- (۱) ډوغل- ژور ډوغل- چوغالے- کوندر- غوچ. (۲) هغه قته یا وړوکے ډوغل، چې ماشومان د غوزانو په لوبه کښې د غوزانو موټې ډك کړي او دغې قتې ته غورزوي.

**غوچاڼے** :- (غَو+چا+نْ+ړَے)- (وــــغوچالے)

**غوچواله**:- (غَو+چْ+وا+لَ) [صف]- (۱) ژوروالے- ډونګے والے- عمق (۲) د ډوغل په شان صورت یا حالت.

**غوچوالے**:- (غَو+چّ+وا+لے)-[وــــــ غوچواله]

**غوچول** :- (غَو+چَ+ؤ+لْ)-[مص]- ژورل- ډونګے کول- مخ په ښکته کنستل.

**غوچونګ** :- (غَو+چَ+ؤ+نْ+ګ)-[اق-حمص]- وــــ غوچونه.

**غوچونه** :- (غَو+چَ+ؤ+نَ)-[حمص]- ژورؤنه- ډوغل جوړونه- کنده جوړونه.

**غوچوونکے** :- (غَو+چَ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-ج:کي]- ډوغل جوړونکے ژوروَنکے.

**غوچه** :- (غَو+چَ)-[اس-مو-ج:چې]- هغه ډوغل چې پکښې بوټے نالولے شي.

**غوچۍ** :- (غو+چی)-[اس-مذ]- د وړو هلکانو یوه لوبه.

**غوچې** :- (غو+چې)-[حرف]- تکیه کلام دے. زۀ مرم د غوچې تۀ بیا وائې چې غوچې. (متل)

**غوچېدل** :- (غو+چې+د+لْ)-[مص]- ژوربدل- ډوغل جوړېدل.

**غوچېدنګ** :- (غَو+چې+دَ+نْ+ګْ)-[اق-حمص]- و____ غوچېدنه.

**غوچېدنه** :- (غو+چې+د+نَ)-[حمص]- ډوغل کېدنه- ژورېدنه.

**غوچېدونکے** :- (غَو+چې+دُ+نْ+کَے)-[مف-مذ-ج:کي]- ژورېدونکے.

**غوچېدۀ** :- (غَو+چې+د+ه)-[و____ غوچېدنه]

**غوځ** :- (غو+تْ سْ)-[اس-مف] (۱) پرېکړے شوے- کټ شوے (۲) زخمي- ژوبل.

**غوځاوو** :- (غُ+تْ سا+وُو)-[اس-فا-مذ]- غوځونکے- پرې کونکے تېرۀ څیز چې غوځول کوي.

**غوځکے** :-(غو+تْ سْ+کَے)[اس-فا-مذ-ج:کي]اسخے- ځواني ته نژدې غویَے. غوائے

**غوځکے** :- (غو+تْ سْ+کَے)-[اس-مذ]- د شمسي کال دوېمه میاشت.

**غوځول** :- (غو+غْ+ؤ)+(ث سْ+ؤ+لْ)-[مص]- (۱) پرې کول- تېرۀ څیز سره پرې کول. (۲) زخمي کول- ژوبلول. (۳) قطع کول- ځبله جدا کول- (۴) لرې کول.

**خبره غوځول** :- (خَ+بَ+رَ+ـــ)

**معامله غوځول** :- (مُ+عا+مِ+لَ+ـــ)- جګړه تنازعه ختمول- د معاملې فېصله کول.

**غوځونه** :- (غو+سَ+ؤ+نَ)-[احمص]- پرې کونه- قطع کونه- جدا کونه.

**غوځوونکے** :- (و____ غوځونې)

**غوځونې** :- (غْ+ؤ+سَ+وُو+نَے)-[اس-فا-ج: نې]- (۱) پرې کونکے- قطع کونکے- (۲) زخمي کونکے.

**غوځون** :- (غُو+تْ سو+نْ)-[احمص]- غوځونه- پرېکونه- پرېکون- قطع کونه.

**غوځه** :- (غُو+تْ سَ)-[اس-مو-ج:ځې]-پرېکړه- پرېکون- قطع- پرې کونه.

**غوځېدل** :- (غو+تْ+ې+د+لْ)-[مص]- (۱) پرې کېدل- قطع کېدل. (۲) زخمي کېدل- ژوبل کېدل.

**غوځېدنګ** :- (غو+تْ+ې+دَ+نْ+ګ)-[اق-حمص]- و____ غوځېدنه.

**غوځېدنـه** :- (غـو+تْ+ې+د+نَ-[احـمـص]-(۱) پـرې کېدنـه- قطـع کېدنـه. (۲) زخمي کېدنه- ژوبل کېدنه.

**غوځېدونکے** :- (غو+تْ+ې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-ج:کي]- (۱) پرې کېدونکے- قطع کېدونکے. (۲) زخمي کېدونکے ژوبلېدونکے

**غوځېدۀ** :- (غو+تْ+ې+د)-[و____ غوځېدنه]

**غوډل** :- (غـو+ډَ+لْ)-[اس-مذ-ج:ان]- یـو قسم ځنګلي جولا- چې ډېر سخت زهرناك وي- غونډل- ګنډل- لړمی.

**غوډل** :- (غو+ډَ+لْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- هغه فصل چې وړې نیولو ته نژدې وي.

**غوډلے** :- (غو+ډ+لَے)-[اس-مذ-ج:لي]- (۱) د لوخې د سر بمبل- بډګال. (۲) د جوارو وړے چې په توده شګه کښې پوخ شوے وي.

**غــور** :- (غَــو+رْ)-[ع-اس-مــذ]- (۱) فکـر- سـوچ- خیـال- توجـه- پـام. (۲) تدبیر- غم. (۳) انصاف- علاج. (د دې لفظ اصل معنٰی ژوروالے عمق ده. خو وروستو ئې په اردو پښتو وغېره ژبو کښې معنی بدلـه شوه) (ځینې خلك ئې (غْ+ؤ+رْ) تلفظ هم کوي).

**غور کول** :- (۱) سوچ کول- فکر کول- توجه ورکول. (۲) علاج کول. دارو دورمل کول- بندوبست کول- غم کول.

**غور کول د څۀ** :- (بندوبست کول- تدبیر کول- بند کول.

تۀ د محشر په سخته ورځ کښې به حېران ولاړ ئې
چې په دنیا کښې ځان ته غور د سمند ونۀ کړې (حافظ)

**غور کول په څۀ (باندې)** :- (مص-تر)- فکر کول- سوچ کول.

کښېنم د رود بـــار تۀ چـــې روانې اوبۀ ګورم!
عمر غونډې درومي، چې ښۀ وکم باندې غور (خوشحال)

**غور کېدل** :- (مص-تر)- فکر کېدل- سوچ کېدل (په څۀ معامله باندې) توجه ورکړې کېدل.

**په غور سره کېدل** :- (په ډېرې توجه سره کتل- په ښۀ پام سره کتل.

**په غور کتل** :- (په ژور نظر کتل- ډېر په فکر سره کتل- په توجه سره کتل- په ځیر ځیر کتل.

**غور** :- (غَو+رْ)-[اس-مع]- په افغانستان کښې د غزني او قندهار په خوا کښې یو علاقه چې پخوا ئې ډېر شهرت لارۀ- د پښتنو په اولنو ټاټوبو کښې شمېرلے شي- اوس د افغانستان یو ولایت (صوبه) دے.

**غور** :- (غُو+رْ)-[اس-صوت]- (۱) د وریځو ګړګوړ. (۲) د اوبۀ برېږے.

**غرغور** :- (غْ+رْ+ـــ)-[اس-صوت]- (۱) تېزې سره یو خوا بل خوا د تللو یا د زغلېدلو اواز. (۲) د موټرو لارو وغېره د ټریفك اواز.

**غــور** :- (غُــو+رْ)-[اس-مـذ-ج:ونـه]- (۱) د مـرې پړڅـوب- بـوغ. (۲) ججوره (د مارغانو).

**غور** :- (غُ+رْ)-[سابقه]- سابقه ده نورو الفاظو سره راځي. او د لوے یا د ((بره پېړې)) معنٰی ورکوي.

**غور نیکۀ** :- (ـــ+نې+كْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- د بره پېړې نیکۀ- د نیکۀ پلار.

**غور** :- (غو+رْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- برخه- حصه- قسمت- خوا- طرف.

**غور** :- (غو+رْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- (۱) تنګ- عار- (صافي). (۲) پېغور.

**غور ګڼل** :- (عار ګڼل- تنګ ګڼل.

**غورات** :- (غو+را+تْ)-[اس-ج]- د غور علاقه.

**غوراډلي** :- (غو+را+ډَ+لي)-[اس-ج]- لاپې شاپې- ډوزې- ډوزماري.

**غورازه** :- (غُو+را+زْ)-[اس-مو-ج:زې]- یو قسم ګیاه ده. چې په پالیز کښې د پالیز د بوټي تر لاندې اچولې شي- غوربېړه- بویا.

**غورانداز** :- (غو+رْ+اَ+نْ+دا+زْ)-[اس-مذ]- د ماشومانو د لوبو لوے څره-لاړو- لاټو.

**غورانګه** :- (غُ+را+نْ+ګَ)-[اس-مو-ج:ګې]- شعله- لنبه- لمبه.

**غوروانګــې** :- (غُ+را+نْ+ګـې)-(۱) د ((غورانګـه)) جمـع ده. (۲) د ((غورانګــه)) اضافي او مجروري وغېره (متغیر) صورت دے.

**غورانګې پورته کېدل** :- (لنبې لمبې پورته کېدل- شعلې پورته کېدل.

**غوراني** :- (غو+را+نې)-[اس-مع]- د درګزئیو څانګه ده. لوني- یا لواني دي.

**غوربر** :- (غُ+رْ+بَ+ړْ)-[و____ غوربېړ]

**غوربېرې** :- (غُ+رْ+بَ+رې) [اس- مو] شور شرابا- د خلکو ګڼه ګوڼه

**غوربنـــد** :- (غُ+رْ+بَ+نْ+دْ)-[اس-مـع]- (۱) غرئیـزه سـیمه- کوهسـار. (۲) د افغانستان د یوې علاقې نوم دے.

**غوربېډو** :- (غْ+رْ+بې+ډُو)-[و____ غوربړ]

**غوربوړې** :- (غُ+رْ+بُو+ړې)-[اس-مو]- د سپېو په یو مخ غپارے.

**غوبېږ** :- (غُ+رْ+بې+ړْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- (۱) د خلکو ګڼه ګوڼه. (۲) افرې تفرې- هله ګوله.

**غوربېل** :- (غو+رْ+بې+لْ)-[اس-مذ]- و ـــــــ غوربړ.

**غوربړ** :- (غّ+ؤ+رْ+پ+ڑْ)-[اس-مذ]- (۱) شور زوږ- شور غوغا- چغې سورې. (۲) د جنګ تېزې تېرې خبرې.

**غورپشې** :- (غَ+رْ+پ+شې)-[اس-جمع-مو]- د پکي- دړکي.

**غورت** :- (غو+رَ+تْ)-[اس-مذ]- سرګرداني.

**غورځکه** :- (غُ+رْ+ز+کَ)-[اس-مو-ج:کې]- د اور بڅرے- سپرغی.

**غورځکه** :- (غُ+رْ+ز+کَ)-[اس-مو-ج:کې]- د لنبي ، لمبې ځوکه- د لنبې، لمبې ژبه.

**غورځنده** :- (غُ+رْ+ز+نْ+دَ)-[صف]- غورځېدونکے- لوېرنده.

**غورځنګ** :- (غُ+رْ+زَ+نْ+ګْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- (۱) د چپو او چتېدل را خلاصېدل- د چپو دانګه. (۲) حمله- چپاؤ- (۳) تحريك.

**غورځنګ کول** :- (۱) (د سیند یا د سمندر) په لویو چپو کېدل- د سیند د چپو او چتېدل را خلاصېدل. (۲) چپاؤکول- حمله کول.

**غورځنګونه** :- (غُ+رْ+زَ+نْ+ګو+نَ- د ((غورځنګ)) جمع ده.

**غورځول** :- (غُ+رْ+ز+ؤ+لْ)-[مص]- (۱) ګوزارول- ښکته اچول- په زمکه اچول. (۲) را پرزول- (۳) زوال راوستل- (۴) له عمله اېستل.- يو تورے د لفظ نه غورځول.

**ښه غورځول** :- (ښ+نْ+رِ+نْ+ــ)- کُریز کول (د مارغانو).

**تيره غورځول** :- (هېرول- د زړۀ نه اېستل.

**ځان غورځول** :- (ځان پست کول- ذلت اختيارول.

**ځان سيند ته غورځول** :- (۱) ځان سيند ته اچول- د خودکشۍ کوشش کول- د ځان د وژلو کوشش کول.(۲) ځان ډېر سخت ازمائش ته اچول.

**د نظره غورځول** :- (سپك ګڼل.

**کوتره غورځول** :- (کوتره د لاسه بره ويشتل چې په هوا شي او الوت شروع کړي.

په يــو نفس زر خطونه راوړي

په هر لور غورځوم د زړۀ کوتره (خوشحال)

**غورځولے** :- (غُ+رْ+زَ+ؤ+لَے)-[اس-مف-ج:لي]- غوزار کړے- ښکته اچېدلے- په زمکه اچولے شوے.

**غورځونه** :- (غُ+رْ+زَ+ؤ+نَ)-[حمص]- ګوزارونه- ښکته اچونه- اړتاوۀنه

**غورځوونکے** :- (غُ+رْ+زَ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-ج:کي]- غــوزارونکے- ګوزارونکے- ښکته اچونکے.

**غورځے** :- (غُ+رْ+زَے)-[اس-مذ-ج:ځي]-(۱) غورځېدنــه-(۲) لاس و پښــې ښکته اچونه- (۳)د اتڼ دانګې ټوپونه. (۴) د اوبو طغياني.

**غورځے** :- (غُ+رْ+زے)-[اس-مذ-ج:ځي] ورغورځېدنه- ور ټوپ کونه. غورځنګ کونه

چا چــې دم وهلے نــۀ شۀ و هغــۀ ته

راشه ګوره چې د چا بانديې غورځے دے (خوشحال)

**غورځي** :- (غُ+رْ+زِي)(۱) د ((غورځے)) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دے.

**په غورځي درومل (تلل)** :- (په ټوپونو تلل- په موجونو تلل- لويو لويو چپو سره تلل.

سېلاب د پاسه راشي په غورځي په ښکته درومي

موجـــوده د سېلاب د اوبـــو هـــم ده ناموجوده (خوشحال)

**غورځېدل** :- (غُ+رْ+زې+د+لْ)-[مص]- (۱) راګوزارېدل- ښکته پرېوتل ښکته اچولے کېدل. (۲) پست کېدل- ذليل او پرېوتي کارونه کول. لکه: زما دا خيال نۀ وۀ چې تۀ به دومره غورځېږې!(۳) ډاکه اچول. داړه ماري کول.

غمازان د عشق په لاره کښې غورزېږي

د صـــادق عاشق له مخه رميده شي (حافظ)

(۴) بېدار بدل- ويښېدل- د خوبه غورځېدلے يم.

**غورځېدنګ** :- (غُ+رْ+زې+دَ+نْ+ګْ)-[اق-حمص]- و ـــ غورځېدنه.

**غورځېدنه** :- (غُ+رْ+زې+د+نَ)-[حمص]- ګوزارېدنه- ښکته اچېدنه- په زمکه اچولے کېدنه- اړتاؤ کېدنه.

**غورځېدونکے** :- (غُ+رْ+زې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-ج:کي]- ګوزارېدونکے- ښکته اچېدونکے- په زمکه اچولے کېدونکے. اړتاؤکېدونکے.

**غورځېدۀ** :- (غُ+رْ+زې+د)-[او ـــ غورځېدنه]

**غورچ** :- (غُ+رْ+چْ)-[او ـــ غورچي]

**غورچي** :- (غُ+و+رْ+چي)-[اس-مذ-ج:ان]- لاهو- لاپو- ډوزمار- غوريالے.

**غورس** :- (غّ+ؤ+رْ+سْ)-[صف-مذ-مو:ه]- غټ- سخت- مضبوط- نېغ.

**غورس کول** :- (غټول- مضبوطول- نېغول- لکول.

**غورس کېدل** :- (غټېدل- کلکېدل- مضبوطېدل- لك کېدل.

**غورسونکے** :- (غو+رَ+سَ+وؤ+نْ+کَے)-[اس-فا-ج-کي-(مو):کې]- غټېدونکے- مضبوطېدونکے- نېغېدونکے.

**غورسونه** :- (غو+رَ+سَ+ؤ+نَ)-[حمص]- غټېدنه- مضبوطېدنه- نېغېدنه.

**غورسېدل** :- (غّ+ؤ+رْ+سې+د+لْ)-[مص لا]- و ـــ غورس کېدل.

**غورسېدنه** :- (غو+رَ+سې+د+نَ)-[حمص]- غټېدنه- مضبوطېدنه. نېغېدنه.

**غورســـېدونکے** :- (غو+رَ+ســې+دو+ن+کَے)-[احمـــص]- غټېـــدونکے- مضبوطېدونکے- نېغېدونکے.

**غورسېدۀ** :- (غو+رَ+سې+دۀ)-[حمص]- غټېدۀ-

**غورغنبت** :- (غُ+رْ+غنبت)-[اس-مذ]- فضول او بې ځايه خبرې.

**غورغوړي** :- (غُ+رْ+غُو+ړَ+ی)-[اس-مو-ج]- بوړبوري- بړبوکي- بړبوړکي- بوړبوړکي- غلفلې.

**غورغشت** :- (غور+رْ+غُ+شْ+تْ)-[ق-اس-مذ]- مېله= ساعت تېرے.

**غورغوشتي** :- (غو+رْ+غو+شْ+تي)-[اس-مو-ج]- فضول او بې ځايه ټوپونه- عبث منډې تړې.- خرچکې ترپکې وهنه.

**غور غور** :- (غو+رْ+غو+رْ) فضول او بې ځايه ټوپونه- عبث منډې تړې.- دړکې- لاپې

**غور غور کول**:- ځان سره په غصه کښې بړبړ کول -فضول او بې ځايه ټوپونه وهل- عبث منډې تړې وهل.- دړکې کول- لاپې وهل-

غور غور کوه خو مونږا غوز نه مه تېرېږه (نقل- متل- اورکزي)

**غورغوښتے** :- (غو+رْ+غُو+خ/ ش+تَے)-[اس-صف-مذ]- د بادام ونه- وربښتے.

**غورغۍ** :- (غُ+رْ+غُ+ی)-[ق-اس-مو]- حلقه- کړۍ- دائره.

**غورکمانه** :- (غُ+رْ+کَ+ما+نَ)-[اس-مو]- د ليندۍ يو قسم.

ويره کـــا له غـــور کمانې

په اسمان چې مرغۀ ورزي (خوشحال)

**غورکے** :- (غّ+ؤ+رْ+کَے)-[اس-صوت]- (۱) د غورغـور (غُرْغُـرْ) اواز. غـور غورے (د پيشو). (۲) مجازاً: د نفرت او د ناخوښۍ خبرې يا د غصّې نه غرېدۀ.

**غورکے کول** :- (۱) د (پيشو) غور غور يا خُرخُر کول.(۲) د کرکې او نفرت خبرې کول. (۳) د غصې نه غرېدل.

**غورګ** :- (غ+وَ+رْ+ګ)-[اس-مذ-ج.ونه]- ذريت- نسل- پښت.

له وحدته شوه پېدا د کثرت غورګه
تـهٔ پـه دا دنيا بـاور کړې د بزرګه (لوانړے)

**غورګ** :- (غورګه- غورګه- غړګه- کچه ډنډر- غندل. (درياب)

**غورلنډسه** :- (غُ+رْ+لَ+نْ+ډ+سَ)-[اس-مـو-ج.سـې]- د اور لويـه لنبـه- لمبـه- غرغنډه.

**غورله** :- (غُ+رْ+لَ-[۱) د ((غور)) (سابقه) تانيث دے.(۲) سرې. (درياب)

**غورله نيا** :- (ـــ+ن+يَا)-[اس-مو-ج.ګانې] د لـوے يـا د ((بـره پېړۍ)) نيـا- د نيـا مور.

**غـورمچ** :- (غ+ؤ+رْ+م+چ)-[اپ تـر-اس-مـذ-ج.ان]- لـوے مـچ- غـټ مـچ- خرمګس.

**غورمستي** :- (غـو+ر+مسْ+تي)-[اس-مـوا]انګتي- غـوبمې- پرزونې- مسـتي- خرمستي.

**غورمکه** :- (غـو+ر+مُ+کَ)-[اس-مـذ]- ګرمکـه- پـه اوړي کښـې د ګرمـۍ نـرۍ او سرې بې شمېره دانې په بدن.

**غورمنه** :- (غ+ؤ+ر+م+ن+نَ)-[اس-مو-ج.نې]- وګورئ غورمنهٔ.

**غورمنه** :- (غ+ؤ+رْ+مَ+نْ+ړَ)-[اس-مـو-ج.ړې]- ناکـه- ناکـه- د ناشـپاتې د قسـم يوه ونه او د هغې مېوه.

**غورمه** :- (غ+ؤ+رْ+مَ)-[اس-مو-ج.مې]- قورمه- مشهور پخکړے خوراک.

**غورنډاز** :- (غُو+ر+نْ+ډا+زْ)-[ق-اس-مذ-ج.ونه]- د ماشـومانو د لـوبو څيـز- پرپـرکے چې پـه خـرمن کښـې تـار واچـوي او چورلـوي ئـې- برېرانکـه. غورنداز هم وئيلے شي.

**غورول** :- (غـو+رَ+ؤ+لْ)-[مص مت]- ټاکل- منتخب کـول- غـوره کـول- چوښول- خوښول.

**غوره** :- (غ+وَ+رَ)-[اصف]- چونړ کړے- د خوښې.

**غوره کول** :- (مص-تر)- چونړ کول- منتخب کول. په ګنو څيزونو کښـې خوښـول- بهتر ګڼل.

**غوره کوونکے** :- (ـــ+کَ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-ج.کي]- چونړ کـوونکے انتخـاب کوونکے- خوښوونکے.

**غوره کېدل** :- (چونړ کېدل- خوښېدل- منتخب کېدل.

**غوره والے** :- (ـــ+وا+لَے)-[اپ تر-اس-مذ]- غوره حالت- خوبي- بهتري.

**غوره** :- (غ+وَ+رَ)-[اس-مو-ج.رې]- لطيفه- ټکاله- خوشحالوونکے- نکته.

**غـوره** :- (غَـو+رَ)-[اس-مـو-ج.رې]- (۱) د مسـتۍ پـه وخـت د اوښ برړېـدهٔ (۲) مجازاً- لاپې- شاپې- ډوزې.

**غوره** :- (غو+رَ)-[ف-اس-مو-ج.رې]- ۱: کچه او شنه مېوه- اکوک- ۲: کچه او تراوهٔ انګور

**غوره ګل**:- (ـــ ګ+لْ [فپ تر –اس –مذ] وچه لونده- ګوره ګـل- هغـه نيمـه وچه نيمه لونده خاوره چې د چت دپاسه اچولے شي.

**دانګورو غوره** :- (دکچه انګورو خوشه. غونچے

**غوره** :- (غُو+رَ)-[ق-اس-مو]- يو قسم سبزي ده چې ډېرې پاڼې کـوي او اومـه خوړے شي.

**غوره** :- (غُ+رْ+رَ)-[اس-صوت]- د غُرغُر اواز

**غوره غوره کول** :- (۱) په خپله کښې ځان سره داسې پټې پټې خبرې کول چې اواز ئې اورېدے شي.(۲) مجازاً: شکايت کـول- د شـکاريت يـا د خفګـان په وجه ځان سره برُبرُ کول.

**غوره** :- (غو+رَ)-[ف-اس-مو-ج.رې]- د ((غور)) تانيث دے.

**غوره نيا** :- (و ـــــ غورله نيا)

**غورهار** :- (غُ+ر+رَ+ها+رْ)-[اس-صوت]- وـــــ غره هار.

**غورتپه** :- (غُ+رَ+ټَ+پَ)-[تف]- ناڅاپه- ناګهانه- په بې خبرۍ کښـې (غُـره ټپه هم وائي).

**غوره لم** :- (غو+رَ+لَ+مْ)-[اپ تر-اس-مذ]- يو غرئيز بـوټے دے چې جرړه ئې د زخمونو د دارو په طور استعمالولے شي.

**غـوري** :- (غـو+ري)-[اصف]د غـور علاقې سره تعلق لـرونکے. د غـور ملك تـه منسوب.

**غوري** :- (غَو+رِي)-[اس-مع]- (۱) سلطان شـهاب الدين چې د غـور د علاقې بادشاه وُ. دد غـې ملك پـه مناسبت ورتـه غـوري وئـيلے شـي. دهٔ اول غـزنے فتح کړ. بيا ئې ډيلے وواهٔ. او قطب الدين ايبك ئې خپـل نايب مقـرر کـړ. په واپسي کښې په لاره ووژلے شهٔ. (۲) د سلطان شهاب الدين د خاندان بادشاهان چې د ۱۴۰۱ هـ نه واخلې تر ۱۴۳۲ هـ پورې ئې پـه غـور کښـې بادشاهي وه.

**غوري** :- (غو+رِي)-[اپ تر-اس]غوروالـه- هغـه چې پـه مرۍ کښـې غـور (پرڅوب) لري.

**غوري** :- (غ+وَ+ري)-[اصف]د ((غـوره)) بـدل شکل دے. د غـوره پـه ځـاے استعمالېږي.

**په غورې نيول** :- (غوره کول- منتخب کول- چونړ کول.

هر چې ستا رضا هغـه کړه
خوشحال ونيوې په غورې (خوشحال)

**غورې** :- (غ+وَ+ر+ې)-[اس-مـو-ج]- (۱) هغـه نکتـې چې پـه اوربـدو ئې زړهٔ تـه خوشحال رسي. لطائف- ټوکې- لطيفې. (۲) لاپې- مجلس- خوږ مجلس- خبرې اترې.

**غـورې کـول** :- (۱) د محبت او د دوسـتۍ خبـرې کـول.(۲) لاپې وهـل- ډوزې ويشتل.

**غـورې کوونکے** :- (ـــ+کَ+وُو+نْ+کَے)-[اپ تـر-اس-فـا-مـذ-ج.کـي]- صـحبت کوونکے- مرکه کوونکے.

**غورې ويشتل** :- (مص تر)- لاپې کول- ډوزې ويشتل.

**غورۍ** :- (غَو+رَۍ)-[اس-مو]-۱ ) د چينۍ يوه رکيبۍ. وائي چې د زهرو څهٔ څيز به پکښې واچولے شهٔ نو ماتـه بـه شـوه.(۲) نن صبا پلنې او ببضـوي لوئې رکيبۍ يا طباخ ته وائي. چې عموماً وريجې (وريژې) پکښې اچولے او خـوړے شـي- دا سـوچه (د چينـۍ) هـم وي او مسـينه هـم وي- اوس د پلاسټکو هم جوړولے شي.

**غورے** :- (غو+رَے)-[اس-مذ]- برخه- قسمت.

مېرزا نن په قلـم راوړه
د ازل د قسمت غورے (مېرزاخان)

**غورياجه** :- (غو+رُ+يا+جَ)-[وـــ غورېژه]

**غورياشه** :- (غُ+رْ+يا+شَ)-[اس-مو]- پلوانبه- غړونده.

**غورياکے** :- (غو+رْ+يا+کے)-[اس-مذ-ج.کي]- يو قسم غوټه شان ده چې د بني ادم په مرۍ کښې پېدا کېږي. غوټه.

**غوريـالے** :- (غ+وَ+رْ+يـا+لے)-[اس-مـذ-ج.لـي]- (۱) لاڤـو- لاپـو- ډوزمـار. (۲) لطيفه ګو- ټوکمار- خوش طبع سړے.

**غوريالے** :- (غُ+رْ+يا+لَے)-[اس-مذ-ج:لي]- هغه سړے چې په مرۍ کښې غور (پړخوب غوندې) لري. غوروالہ- غوري.

**غوريانے** :- (غِّ+وْ+رْ+يا+نَے)-[اق-اس-مذ]- غنم گل- غوريانے. د غنم کچه وړے. (ف- گل گندم)

**غوربجه** :- (غو+رې+جَ)-[اس-مو]- د سبزلولرگے- خشاکي لرگے.

**غوربدل** :- (غُ+رې+د+لْ)-(۱) غورغور (غُرغُر) کول- (۲) ځان سره په غصه کښې برېر کول. (۳) د وريځو اواز کول- کرېدل- گړگړ کول. عبث او فضول خبرې کول.

**غوربدلے** :- (غو+رې+د+لے)-[اس-مف-مذ-ج:لي-(مو:لې]-(۱) هغه چې غُرغُر ئې کړے وي. (۲) هغه چې ځان سره ئې غصه کښې برېر کړي وي. (۳) هغه ورځې چې گړېدلې وي. (۴) هغه څوك چې عبث خبرې ئې کړې وي.

**غوربدنگ** :- (غو+رې+دنگ)-[احمص]- وگورئ (غوربدنه)

**غوربدنه** :- (غ+رې+د+نَ)-[احمص]- (۱) غور غور (غُرغُر) کونه. (۲) ځان سره په غصه کښې برېر کونه. (۳) په اسمان کښې د وريځو گړگړ کونه. (۴) عبث او فضول خبرې کونه.

**غوربدونکے** :- (غُ+رْ+رې+دُو+نْ+کَے)-[افا-ع-مذ-ج:کي]-(۱) غور غور (غُرغُر) کوونکے- (۲) ځان سره په غصه کښې برېر کوونکے. (۳) په اسمان کښې وريځې گړگړ کوونکې. (۴) عبث او فضول خبرې کوونکے.

**غوربز** :- (غ+وَ+رې+زْ)-[صف-مذ-مو:ه]- غوره شوے- چون شوے. منتخب- (د ټولونه) ښهٔ- بهتر

**غوربزه** :- (غو+رې+زَ)-[اس-مو]- يو قسم ازغن بوټے- وگورئ (غوربژه)

**غوربژه** :- (غُ+رې+ژَ)-[اس-مو-ج:ژې]- يو قسم گيا ده چې د پالېز د لاندې اچولې شي- بويا- بويه- غوربره.

**غوربره** :- (غُ+رې+گ+ژَ)-[او___ غوربژه]

**غوړ** :- (غ+وَ+ړْ)-[صف-مذ-مو:ه]- (۱) هغه څيز چې غوړي يا وازده وغېره لري. (۲) مجازاً: مالدار- شته مند- دولتمند.

**غوړبجن** :- (___+بې+ج+نْ)-[اپ تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه کس چې هم لړ شان څورب وي او هم گنده او خيرن وي- قرميزن.

**غوړپر** :- (___+پَ+ړْ)-[اپ تر-صف-مو:غوړه پړه]- (۱) هغه کس چې بدن يا جامې ئې په غوړو تېلو وغېره سره لړلې شوې وي. (۲) هغه څيز چې تېل يا غوړي يا داسې قسم بله کومه داسې ماده پرې مړلې شوې وي. (۳) غټ- تروتازه. (۴) ښکلے- رنگدار. ښائسته.

**غوړ په غوړ توئېدل** :- (۱) يو مالدر سړے دبل مالدراه سرې پره کوي.

**غوړ پيکے** :- (___+پې+کَے)-[اس-مذ-ج:کي]- هغه ځوان هلك چې د فېشن دپاره ئې څنې پربښودې وي.

**غوړ خولے** :- (___+خُ+لَے)-[اپ تر-اس-مذ-ج:لي]- هغه کس چې هر وخت ئې خولهٔ غوړه وي. مجازاً: د خوراك شوقين- گېډه ور- شکم پرست.

**غوړ رانځهٔ** :- (___+را+ن+(د)زُ+-(ج))-[اپ تر-اس-جم]- هغه رانجهٔ چې په کوچو کښې حل کړي شوي وي.

**غوړ زانخے** :- (___+زا+خے)-[اپ تر-اس-مذ-ج:خي]- غوانزخي. کجورې (يو قسم کورنۍ متيانې)

**غوړزگے** :- (___+ز+گے)-[اپ تر-اس-مو]- څورب والے- د څورب والي علامې.

**غوړ زون** :- (___+زُو+نْ)-[اپ تر-اس-مذ]- وازده- وازگه- چربي.

**غوړ ژبے** :- (___+ژُ+بَے)-[اپ تر-صف-مذ-ج:بې]- غوړه ژبه لرونکے. مجازاً- خوشامندگره- چاپلوس.

**غوړ ژبي** :- (اس-مو)- و___ غوړژبے

**غوړ ستړگے** :- (___+س+تْ+رْ+گَے)-[اپ تر-صف-مذ-ج:گي]- غوړو سترگو واله- ښکلو سترگو واله- د ښکلو سترگو خاوند. (يا مېرمن)

**غوړ سرے** :- (___+س+رَے)-[اپ تر-صف-مذ-ج:ي]- غوړ سر واله- مجازاً دولتمند سړے- شته مند سړے- مالداره.

**غوړ سوے** :- (___+س+وَے)-[اس-مذ-ج:سوي]- هغه (بد) بوي چې د هډوکي، څرمنې يا د ډيوې نه را پيدا کېږي.

**غوړ لانه** :- (___+لا+نَ)-[اپ تر-اس]- هغه دېگ يا بل کوم لوښے چې غوړ شوے وي. هغه خاورين لوښي چې غوړ پکښې جذب شوي وي.

**غوړ لستوڼے** :- (___+لَ+س+تُو+نْ+ړے)-[اپ تر-صف-مذ-ج:ړي]- هغه کس چې لستوڼے ئې غوړ وي- کنايةً: مالداره او شته من سړے- معتبر سړے.

**غوړ لوښے** :- (___+لو+خے/ښے)-[اپ تر-صف-مذ-ج:ښي]- کنايةً: هغه سړے چې نصيحت پرې اثر نهٔ کوي. (لکه څنگه چې اوبهٔ په غوړ لوښي نهٔ اېسارېږي).

**غوړ مرغه** :- (___+مُ+رْ+غَ)-[اس-مو]- يو قسم گيا ده چې تل شنه او ترو تازه وي.

**غوړ مربجه** :- (___+مُ+رې+جَ)-[اس-مو-ج:جې]- هغه غوا چې په اول ځل لنگه شوې وي.

**غوړ منگے دے** :- (جمله)- د غوړ منگي دپاسه اوبهٔ نهٔ اېسارېږي. مجازاً: د هغه سړي په حقله وئيلے شي- چې د چا خبره يا نصيحت وغېره پرې اثر نهٔ کوي.

**غوړ مېجن** :- (___+مې+جُ+نْ)-[اپ تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه څيز چې د غوړو په لگېدو خيرن غوندې ښکاري- په غوړو خيرن- مطلق خيرن.

**غوړ مېچک** :- (___+مې+چَ+کْ)-[او___غوړېجن]

**غوړ مېچن** :- (___+مې+چُ+نْ)-[او___ غوړمېجن]

**غوړ مېسن** :- (___+مې+سُ+نْ)-[او___ غوړېجن]

**غوړ وانبهٔ** :- (___+وا+ښُ)-[اپ تر-اس-جم]- تروتازه وانبهٔ بوټي.

**تور غوړ** :- (تو+رْ+___)-[اس-جم]- د ډيوې تېل.

**د کب د ځيگر غوړ** :- (هغه تېل چې د کبانو د ځيگر (اينې) نه رايستے شي- د کبانو تېل. (انگ: کاډليور آئل)

**غوړاڅکے** :- (غّ+وَ+را+(ث)س+کَے)-[او___ غوړاسکے]

**غوړاسکه** :- (غُ+را+س+کَ)-[ق-اس-مو-ج:کې]- يو قسم بوټے دے، چې په فصل کښې پيدا کېږي او فصل ته نقصان رسوي.

**غوړاسکے** :- (غُ+را+س+کَے)-[اس-مذ-ج:کي]- يو غرئيزه ونه ده. چې لکه د ولې پاڼې لري- غرئيزه ونه چې څانگې ئې په چتونو اچولې شي او د بلولو دپاره هم استعمالېږي. وړه وونے- زېړه وونے

**غوړاشه** :- (غُ+را+شَ)-[اس-مو-ج:شې]- (۱) تنې سُورے- کاج. (۲) د کلك تار يا د مزي هغه حلقه چې پکښې د کپړې د تنې غوټۍ اچولې او تړلے شي.

**غوړانځه** :- (غُ+را+نْ+زَ)-[اس-مو-ج:ځې]- د اور هغه لنبه (لمبه) چې لوگے هم ورسره شامل وي.

**غوړانگه** :- (غُ+را+نْ+گَ)-[اس-مو-ج:گې]د نمر (نور) پلوشه- وړانگه-

دلمر شعاع.

**غوړانګے** :- (غُ+ړا+نْ+ګے)-[اس-مذ-ج:ګې] - يو غرئيز بوټے دے.

**غوړاوو** :- (غُ+ړا+وُو)-[اس-مذ] - غوړمالي- خوشامندګر- چاپلوس.

**غوړاوۀ** :- (غْ+وَ+ړا+ؤ)-[حمص] - (۱) غوړونه- غوړ ورپورې کونه. (۲) مجازاً: خوشامندګري.

**غوړپ** :- (غُ+ړَ+پْ)-[اس-مذ] - ګوټ- جرۍ- غوړپ.

**غوړپ غوړپ** :- (۱) غټ غټ ګوټونه(۲) د غټو غټو ګوټونو اخستلو (ښبلو) اواز.

**غوړپ کول** :- (ګوټ اخستل- يوه جرۍ ښبل- ګوټ کول.

**غـوړپر** :- (غُ+وَ+ړ+پَ+ړ)-[صـفت] - (۱) بالکـل غـوړ- پـوره غـوړ (۲)- تـازه- بنائسته.

**غوړپکه** :- (غُ+ړْ+پَ+کَ)- حادثه- ښپېره- غوړپکۍ.

د فلك غــوړپکــې نۀ دي تا خوړلي

څکه ږدې هسې دستار په تندي هوك (حميد بابا)

**غوړپکۍ** :- (غو+ړْ+پَ+کَ+ۍ)-[پ تر-اس-مو] - ښپېره- چپړاخه- تتوړه- پړق.

**غوړپـل** :- (غ+ړَ+پْ+لْ)-[مص] - پـه غـوړپ غـوړپ ښبـل- پـه ګوټونـو ښبـل- ګوټل- مطلق ښبل.

**غوړپلے** :- (غ+ړ+پ+لَے)-[اس-مف-ج:لي] - په غړوب غړوپ ښبلے شوے- په ګوټ ګوټ ښبلے شوے- شوپلے- ګوټلے- غړپولے.

**غوړپنه** :- (غُ+ړُ+پ+نَ)-[حمص] - پـه غـړوب غـړوپ ښبلے کېدنـه- پـه ګـوټ ګوټ ښبلے کېدنه- مطلق ښبنه- غړپونه- ګوټنه.

**غوړپول** :- (غ+ړَ+پَ+ؤ+لْ)-[و ــــ غوړپل]

**غوړپونګ** :- (غ+ړ+پَ+ؤ+نْ+ګْ)-[اق-حمص] - و ــــ غوړپونه.

**غوړپوونکے** :- (غ+ړ+پَ+وُو+نْ+کے)-[اس-فـا-ج:کـي] - پـه غـړوپ غـړوپ ښبونکے- په ګوټ ګوټ ښبونکے.

**غوړپيدل** :- (غ+ړ+پې+د+لْ)-[مص] - په غـوړپ غـوړپ ښبلے کېدل په ګوټ ګوټ ښبلے کېدل.

**غوړپيدنګ** :- (غ+ړ+پې+د+نْ+ګْ)-[اق-حمص] - و ــــ غوړپېدنه.

**غوړپيدنه** :- (غ+ړ+پې+د+نَ)-[حمص] - په غړوب غړوپ ښبلے کېدنه- په ګوټ ګوټ ښبلے کېدنه.

**غوړپيـدونکے** :- (غ+ړ+پې+دُو+نْ+کَے)-[مف-مـذ-ج:کـي] - پـه غـړوپ غـړوپ ښبلے کېدونکے- په ګوټ ګوټ ښبلے کېدونکے.

**غـوړپيش** :- (غ+وَ+ړ+پې+شْ)-[اپ تـر-اس-مـذ] - غـوړه پېشـه. غـور غـور پېش پېش کونـه- ګرمې ګرمې خبرې- د قهر او غصې خبرې- د رعب داب خبرې.

**غـوړپيش کـول** :- (۱) د جنـګ تېـزې تېـزې او ګرمـې ګرمـې خبـرې کـول. (۲) د غصې او قهر نه ډکې خبرې کول. (۳) د رعب داب خبرې کول.

**غوړپيکے** :- (غ+وَ+ړَ+پې+کے)-[اس-صف-مذ-ج:کي] - هغه هلك يا ځوان چې د فېشن دپاره ئې ځنې ساتلې وي.

**غوړتپے** :- (غ+وَ+ړ+تَ+پَے)-[اس-مـذ] - هغـه غـوړ داغ چـې د ښـوروا دپاسـه ګرځي.

**غوړځکه** :- (غُ+ړْ+ز+کَ)-[اس-مو-ج:کې] - د اورلبنه- لمبه- شعله.

**غوړدانګه** :- (غُ+ړْ+دا+نْ+ګَ)-[اپ تر-اس-مو-ج:ګې] - ټوپ- دانګه.

**غوړدانګې** :- (غُ+ړ+دا+نْ+ګې)- (۱) د ((غوړانګه)) جمع ده. (۲) د ((غوړ دانګه)) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دے.

**غوړدانګې وهل** :- (مص-تر)- ټوپونه وهل- دانګل را دانګل.

**غوړزانبے** :- (غَ+وَ+ړ+زا+نبَے)-[اس-مذ] - يو قسم کورنۍ متيايي.

**غوړزګے** :- (غ+وَ+ړ+زَ+ګے)-[اس-مذ] - وازده- وازګه- چربي- غوړزون

**غوړسـکه** :- (غ+و+ړ+سْ+کَ)-[اس-مـو-ج:کـې] - ګورلُـوګے- د وربځـې چـم غړوسکه- غورشکه.

**غوړشکه** :- (غ+و+ړ+شْ+کَ)-[اس-مو-ج:کې] - ګڼه ګونه- زياتوالے- انبوه. (د اور تېزه لمبه)

**غوړشکه غوړشکه** :- (ـــــ+غ+ؤ+ړ+شْ+کَ)- ټولے ټولے- ډلې ډلې- انبوه انبوه- دسته دسته.

**غوړښتے** :- (غو+ړ+شْ+تے)-[اس-مذ] - غرئيز تراخۀ بادام.

**غوړکے** :- (غ+وَ+ړ+کے)-[اس-تص] - (۱) د ونې کچه ځانګه- شنه ځانګه- لښته. (۲) د بوټو يو مرض چې په پاڼو لګي. (۳) يو قسم بوټے چې په ونو خيژي. (۴) کنړے- جنجړے- ببرختونړ.

**غوړکے** :- (غو+ړ+کے)-[اس-مذ-ج:کي] - غوټۍ- کلۍ- شګوفه.

**غوړګه** :- (غُ+ړ+ګَ)-[ق-اس-مو-ج:ګې] - د پښې ساق- پنډۍ- سپينه- پړکے

**غوړګه** :- (غُ+ړ+ګَ)-[اس-مـو-ج:ګې] - (۱) هغـه (نرۍ) ځانګه چې نوې پاڼې پکښې ټوکېدلې وي. (۲) هغه نل چې مېنځ ئې ډك وي- درګه. (۳) يو قسم واښۀ-(ظفر). (۴) معمولي څيز. لکه: په جرګه غوړګه جنګ کول يا ښنتل. (۵) وارۀ بوټي.

له يارانو خالي شوے بورجل ځۀ کړې

بې ګلو رېز د غړوګو ځنګل ځۀ کـړې (حافظ)

**غوړګه** :- (غ+ړ+ګَ)-[اس-مو-ج:ګې] - (۱) تنډورے- چپړکے- هغه چې د ونې وېخ نه را پورته کېږي. (۲) دورمه- نل (چې مېنځ ئې ډك وي).

**غـوړګي** :- (غـو+ړْ+ګي)-[اس-ج] - د جـوارو هغـه دانـې چـې پـه بـټ کښـې د وريتولـو پـه وخـت وړ ټوکېـږي او ګـل شـي- پـولې- پړسـتې- واحـد ئـې (غوړګۍ) ده.

**غوړلی** :- (غ+ؤ+ړ+لْ+ی)-[اس-مو] - د جوارو هغه تش (وږے) چې دانې ئې لا نۀ وي پېدا کړي- تشه توکه.

**غوړم** :- (غ+ؤ+ړَ+مْ)-[اس-صوت] - (۱) غړنب غړمب- د زمري- سپي وغېره د حملې اواز. (۲) د توپې اواز.

**غوړمـال** :- (غ+وَ+ړْ+ما+لْ)-[اپ تـر-اس-مـذ] - (۱) خوشـامندګرے- چـاپلوس- (۲) (اس-مذ) ډېر دولت- (۳) بنائسته جينۍ يا هلك.

**غوړمالي** :- (غ+وَ+ړْ+ما+لي)-[پ-اس-مو] - خوشامندګري- چاپلوسي- لاپې- ډوزې- مکر- فرېب.

**غوړمبه** :- (غُ+ړ+مْ+بَ)-[اس-مو-ج:بې] - لمبه- شعله- د اور لويه لنبه.

**غوړمبه وهل** :- (لمبه کېدل- لمبه پورته کېدل- لمبه وهل.

**غوړنجه** :- (غُ+ړ+نْ+ج)-[اس-مو-ج:جې] - د اور لمبې- د لمبې ژبې.

**غوړنجه وهل** :- (لمبه پورته کېدل- لمبه وهل- غوړمبه وهل.

**غوړنځے** :- (غُ+ړ+نْ+زے)-[اس-مذ-ج:ځې] - د صنوبر ونه- د زېړ غوز ونه.

**غوړنځے کنډ** :- (ــــ+کَ+نْ+ډ)-[اپ تر-اس-مـذ] - هغـه چيـړ چې د صنوبر پـه ونـه کښې پېدا کېږي.

**غوړندے** :- (غ+وَ+ړ+نْ+دَے)-[اس-مذ-ج:دي] - هغه پټه يا د پړې حلقه چې د ځاروي په مرۍ کښې اچولے شي.

په سر د چج کونځې پرتې دي
يوه ترې راکړه چې ئې د غوا غوړندے کړمه (ټپه)

**غوړنے** :- (غ+وَ+ړَ+نَے)-[اپ تر-صف-مذ-مو:نې] - غوړ سره تعلق لرونکے.

**غوړو** :- (غ+وَ+ړو)د ((غوړې)) (جمع) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دے.

**په غوړو خبرو تېرايستل** :- (د دوکې او د فرېب په خبرو دوکه کول.

**غوړو** :- (غ+وَ+ړو)- د ((غوړي)) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دے.

**د غوړو مچ** :- (ـــ+م+چْ)- کنايه: بې بلنې او بې تپوسه يو مجلس ته راتلونکے سړے- نابللے سړے.

**لکه د غوړو د مچ راډانګل (په تالي کښې)**:- بې تپوسه بې بلنې په يو کار کښې دخل ورکول.

**غوړوکے** :- (غ+وَ+ړُو+کَ+ے)-[اس-مو] - غوټۍ- کلي- شګوفه.

**غـوړول** :- (غ+وَ+ړَ+وُ+لْ)-[امـص] (۱) پـه څـۀ څيـز غـوړي (يـا تېـل) لګـول (۲) خوشامندي کول- د څۀ مطلب د ابستلو دپاره د چا (بې ځايه) صفتونه کول.

**ګنه غوړل** :- (ګُ+نَ+ـــ)- د مطلب د ابستلو دپاره د چا بې ځايه صفتونه کول.

**غوړول** :- (غ+وَ+ړ+وُ+لْ)-[امص] - خورَول- ويړول.

**دام غـوړول** :- (د را ګېرولـو دپـاره لومـه کښېښـودل- د چانـه د مطلب ابسـتلو دپاره نيکي کول.

**لمن غوړل چاته** :- (په عاجزۍ سره د چانه سوال کول.

په دلالانو پوره نۀ شوه
اوس به لمن يار ته پخپله غوړومه (ټپه)

**غوړول** :- (غ+وَ+ړ+وُ+لْ)-[امص] - شګفته کول- د غوټۍ ګل کول.

**غوړولے** :- (غ+وَ+ړَ+وُ+لَے)-[اس-مف-مذ-ج:لي] - (۱) خـور کړے. (۲) کنايـه: د مزکي مخ- د شرق نه تر مغرب پورې د زمکې مخ.

**غوړولے** :- (غ+وَ+ړَ+وُ+لَے)[اس-مف-مذ-ج:لي]ګـل کـړے (د غـوټۍ) شـګفته کړې.

**غوړنځے** :- (غُو+ړَ+نْ+زَ+ے)-[اس-مذ] - چلغوزي- د چلغوزي ونه.

**غوړونک** :- (غ+وَ+ړَ+وُ+نْ+ک)-[اق-حمص] - و ـــ غوړونه.

**غوړونه** :- (غ+وَ+ړَ+وُ+نَ)-[حمص] (۱) غوړ وريوري کونه- غوړ څيز لکه غوړي تېل وغېره ورلګونه. (۲) د مطلب ابستلو دپاره صفت کونه- خوشامندي کونه.

**غوړونه** :- (غ+وَ+ړَ+وُ+نَ)-[حمص] - خورَونه- څادر- درۍ، قالين وغېره په زمکه خورونه.

**غوړونه** :- (غ+وَ+ړَ+وُ+نَ)-[حمص] - د غوټيو ګل کونه- شګفته کونه.

**غوړوونکے** :- (غ+وَ+ړَ+وو+نْ+کَے)-[فا-اس-مذ-ج:کي] - غـوړ پـورې کـوونکے- غوړ لګوونکے.

**غوړوونکے** :- (غ+وَ+ړ+وو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي] - خورَوونکے- ويرونکے.

**غوړوونے** :- (غ+وَ+ړ+وو+نَے)- هغه څيز چې خورَولے شي. د خورولو وړ څيز- هغه څيز چې د فرش په طور غوړولے شي. لکه: درۍ- قالين وغېره.

**غوړه** :- (غو+ړَ)-[اس-مو-ج:ړې] - الزام- ذمه واري.

**غوړه اړول په چا** :- (الزام په چا کښېښودل- ذمه واري په (بل) چا اړول.

**غوړه** :- (غ+وَ+ړَ)-[صف-مو-ج:ړې]- (۱) غـوړ شـوے- هغه څيز چې غـوړي يا بل غوړ څيز (لکه تېل) پرې لګېدلي وي. (۲) غوړه خبره- د خوشامندي خبره- نرمه او پسته خبره.

هېڅ خبر نۀ دي له ځانه ډوب په مينه
نـۀ پــرې غـوړه کا اثر نۀ ملامته (حسېن)

**غوړه سامي** :- (ـــ+سا+مَ+ی)-[اپ تر-اس-مو-ج:غوړې سامۍ] - مالدار سړے- دولتمند خريدار وغېره.

**غوړه بنځه** :- (ـــ+ش+ځَ)-[اپ تر-اس-مو-ج:غوړې بنځې] - (۱) څربـه بنځه. (۲) هغه بنځه چې زيات فېشن کوي- او بنکلې وي.

**غوړه مال** :- (ـــ+ما+لْ)-[و ـــــ غوړمال]

**غوړه مالي** :- (ـــ+ما+لي)-[و ـــــ غوړمالي]

**غوړه مرغۍ** :- (اس-مع)- د قندهار په خوا کښې د يوې علاقې پخوانے نوم- وائي چې پښتانۀ ټول پخوا دغـه علاقـه کښې اباد وو (اوس هم په دغـه سيمه يوه علاقه ((وچه مرغۍ)) بللے شي).

**غوړي** :- (غْ+وَ+ړي)-[اس-جم] - روغن- غوړ چې د کچو- وازدې او نباتاتو نه ابستلے شي.

**غوړي په غوړو توئېدل** :- (د يو جنس څيز خپل هم جنس سره يوځاے کېدل- په متل کښې استعمالېږي. غوړي غوړو له ځي.

**غوړي مست** :- (ـــ+مَ+س+تْ)-[اپ تر-اس-مذ] - يو قسم نبات (ګيا بوټے) دے. د دوايۍ په توګه استعمالېږي- ګنچه.

**غوړي وريژې (وريجې) خوړل** :- (بنۀ بنۀ خوراکونه کول- عېش کول- مزې کول. پښتون چې د سلو واوري نو غوړي وريژې (وريجې) خوري. (متل)

**بناسپتي غوړي**:- (بَ+نا+س+بَ+پَ+تي+ـــ)-[اس-جم] - هغه غوړي يا تېل کوم چې دبوټو او ګلونو وغېره نه جوړ کړے شوي وي.

**دلم غوړي** :- (دَ+لْ+مْ+ـــ)-[اپ تر-اس-جم] - هغه غوړ څيز- کوم چې د ګډانو د لم په ويلي کولو جوړولے شي. شَله. (کوم غوړي چې د څاروو د وازدو نه جوړ کړے شي ((ډل)) (ډال) نومېږي.

**د ماهيانو غوړي** :- (دَ+ما+هـ+يا+نو+ـــ)-[اپ تر-اس-جم] - هغه غوړ يا تېل کوم چې د ماهيانو (کبانو) نه ابستے شي. دا عموماً د خاص قسم کبانو چې ((کاډ)) نومېږي د ځيګر نه ابستے شي او د دارو په توګه استعمالېږي. د کبانو تېل- (انګ: کاډليور آئل)

**زېړ غوړي** :- (ز+ې+ړْ+ـــ)-[اپ تر-اس-جم] - د غـواؤ غـوړي هغـه غـوړي چې د غواؤ پيو د کچو نه جوړ کړے شوے وي. روغن زرد. (عموماً د داروګانو په توګه ليکلے شي)

**ژړ غوړي** :- (ژ+ړْ+ـــ) (و......... زېړ غوړي)

**نباتي غوړي**:- (نَ+با+تي) -[اعپ تر-اس-جم] - هغـه غوړ کوم چې د بوټو ګلونو وغېره نه جوړولے شي. بناسپتي.

**غوړې** :- (غ+وَ+ړې)-(۱) د ((غوړه)) جمع ده. (۲) د ((غوړه)) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دے.

**غوړې خبرې** :- (ـــ+خَ+بْ+رې+)[اپ تر-اس-ج] - داسې خبرې چې بل کس پرې څۀ کار ته اماده کړے شي. د دوکې داکې خبرې- د تېر ېستلو خبرې- شنۀ باغونه.

**غوړې زېړې** :- (غوړ څيزونه- د غوړو نه ډک خوراکونه.

**غوړې زېړې وهل** :- (غوړ خوراکونه کول- مجازاً بنۀ بنۀ خوراکونه کول لکه: تا به نن هلته غوړې زېړې وهلې وي.

**غوړياشه** :- (غ+و+ړ+يا+ش)-[اس-مو-ج:شې] - د تنۍ سُورے- هغه سُورے چې تنۍ پکښې بندولے شي. (غرياشه يا غراشه- اصلاً د مزي يوه حلقه شان وي- په کومه کښې چې د کړې ته جوړه شوې غوټه شان اچولې او ننبلوې شي. اوس د تنۍ کاج ته هم وائي.

**غوړيال** :- (غُ+ړ+يا+لْ)[اصف-مذ-مو:ه]په غوړو څيزونو غوړ شوے مجازاً:

خیرن.

د بونیر د جونو نوم په خولهٔ وامه خله
دود الـــودې غوړیالې، زړې بخنې (خوشحال)

**غوړپانځکی** :- (غ+وَ+ړْ+یا+نْ+ځَ+کَ+ی)-[اس-مو]- د سوسن ګل.

**غوړپانه** :- (غ+ؤ+ړْ+یا+نَ)-[اس-مو-ج:نې]- د سوسن د ګلونو یو قسم دے. چې ابې ګلونه کوي- پاڼې ئې اوږدې وي- او عموماً د غنمو په فصل کښې پیدا کېږي.

**غوړپانې** :- (غ+ؤ+ړْ+یا+ن+ے+ن)-[اپ تر-اس-مذ]- غنم ګل- یو قسم بوټے چې په ادبرو کښې پیدا کېږي. (ف:ګور کندم)

**غوړبخی** :- (غ+وَ+ړې+س+ی)-[اس-مو]- ګنې څنې- ګلګوټې زلفې.

**غوړبدل** :- (غ+وَ+ړې+د+لْ)-[امص]- غوړ یا تېل وغېره پرې پورې لګېدل.

**غوړبدل** :- (غ+وَ+ړې+د+لْ)-[امص]- په کوم څیز باندې ور پرې وتل- او لاسونه ترې چاپېره کول.

په پیر بابا به ورغوړېږم
که مې قبول کړي دا لنډې لنډې سوالونه (ټپه)

**غوړېدل** :- (غ+وَ+ړې+د+لْ)-[امص]- د کلی ګل کېدل- د غوټی نه ګل جوړېدل- د ګل یا د ګلونو پرانستے کېدل.

لابه ګـــوره ځـه ځه شان غوټی واکا
د ښائست بهار ئې اوس نوے غوړېږي (خوشحال)

**تندے غوړېدل** :- (تَ+نْ+دَ+ے+ـــ)- تندے د ګل په شان پرانستے کېدل- تندے رونېدل- د تندي خندل- خوشحالي څرګندېدل.

**غوړېدلے** :- (غ+وَ+ړې+د+لَے)-[اس-مف-مذ-ج:لي]- (۱) پرانستے شوے. (۲) خور وور شوے. (۳) شګفته شوے.

**غوړېدلے** :- (غ+وَ+ړې+د+لَے)-[اس-مف-مذ-ج:لي]- د ګل په شان پرانستے شوے. ترو تازه- خوشحاله.

**غوړېدلے بازار** :- (ـــ+با+زا+رْ)-[اپ تر-اس-مذ-ج:ونه]- پرانستے بازار- هغه بازار چې بند نهٔ وي. ویړ بازار.

چې زما د سود بازار ؤ، در بسته شهٔ
ځهٔ مـــې کار په بازارونو غوړېدلیو (حافظ)

**غوړېدلي** :- (غ+وَ+ړې+د+لي)- د «غوړېدلے» جمع ده. او اضافي او مجروري وغېره (متغیره) شکل دے.

**په غوړېدلي تندي** :- (ـــ+تَ+نْ+دِي)- په پرانستې تندي- په روڼ تندي- په خوشحالی او رضامندی سره.

**غوړېدنه** :- (غ+وَ+ړې+د+نَ)-[احمص]- (۱) غوړ یا تېل پورې کېدنه. (۲) په خوشامندو تېروتنه.

**غوړېدنه** :- (غ+وَ+ړې+د+نَ)-[احمص]- خورېدنه.

**غوړېدنه** :- (غ+وَ+ړې+د+نَ)[احمص]- د غوټی ګل کېدنه. د کلی پرانستې کېدنه.

**غوړېدونکے** :- (غ+وَ+ړې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- خورېدونکے- فرض جوړېدونکے.

**غوړېدونکے** :- (د دغه)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- د کلی یا غوټی نه ګل کېدونکے- پرانستے کېدونکے.

**غوړېدهٔ** :- (غ+وَ+ړې+دَ)-[و_____ غوړېدنه]

**غوړېژه** :- (غ+وَ+ړې+ژَ)-[اس-مو] یو قسم وابنهٔ.

**غوړېشه** :- (غ+ؤ+ړې+شَ)-[اس-مو-ج:شې]- (۱) و___ غوړیاشه. (۲) تېزندی. (۳) ښبتې او الول وهښته. (۴) کالګوټې- ګلګوټې ګولګوټې- ګارګوټې.

**غوړېکه** :- (غ+و+ړې+کَ)-[اپ تر-اس-مو-ج:کې]- ناڅاپې پېښېدونکې حادثه- ناګهاني پېښه. مطلق حادثه- واقعه.

**غوړین** :- (غ+وَ+ړې+نْ)[صف-مذ-مو:ه]هغه څیز چې غوړو سره تعلق لري. غوړیز.

**غوړینی** :- (غ+وَ+ړې+نَ+ی)-[اس-مو]- هغه خاورینه کټوی چې ډېر استعمال سره توره او غوړه شوې وي. خصوصاً هغه کوټی چې پی (شودهٔ) پکښې ګرمولے شي- داسې کټوی عموماً غوړې شوې وي.

**غـوز** :- (غُ+زْ)-[اس-مذ-ج:ان]- اکوړ (مشهور سخت پوسته وچه مېوه) (ف: چارمغز). اخروټ

**غوز** :- (غو+زْ)-[اس-مذ]- هغه وازګینه پرده چې کولمې ترېنه چاپېره تاؤ را تاؤ او ښبتې وي.

**غوز** :- (غ+زْ)-[اس-مذ]- د غواؤ او ګډو- بزو وغېره نوکان.

**غوزار** :- (غُ+زا+رْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- ګوزار- ضرب- ټس- ډب.

**غوزار خوړل** :- (ډب خوړل- ټس خوړل- وهلے کېدل- ضرب خوړل. ګوزار خوړل.

**غوزار رسول** :- (۱) ډب ورکول- ټس ورکول. (۲) نقصان رسول. ډب رسول.

**غوزار کول** :- (ګوزار کول- ضرب رسول.

**غوزار ورکول** :- (ډب ورکول- ټس ورکول- وهل. ضرب رسول- ګوزار ورکول.

**غـوزار** :- (غُ+زا+رْ)-[اس-مف]- پرېوتے- په زمکه غورزېدلے. (اصلاً «غوزار شوے») دے.

**غوزار شوے** :- (اس-مف-مذ-ج:شوي]- پرېوتے- په زمکه غورېدلے.

**غوزارل** :- (غ+زا+ر+لْ)-[امص]- و___________ غوزارول.

**غـوزارول** :- (غُ+زا+رَ+وَ+لْ)-[امص]-غـوزول- اړتاؤول- په زمکه اچول- د لاسه اچول.

**غوزارونه** :- (غُ+زا+رَ+وَ+نَ)-[احمص]- غورزونه- اړتاؤکونه- ښکته اچونه- په زمکه اچونه.

**غوزارونکے** :- (غُ+زا+رَ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- (۱) غورزوونکے- اړتاوَونکے- له لاسه اچونکے- په زمکه اچوونکے. (۲) پرزوونکے.

**غوزارېدل** :- (غُ+زا+رې+د+لْ)-[امص]- غورزېدل- پرې وتل- ښکته اچولے کېدل- په زمکه اچولے کېدل.

**غوزارېدنه** :- (غُ+زا+رې+د+نَ)[احمص]غورزېدنه- پرېوتنه- ښکته اچولے کېدنه.

**غوزارېدونکے** :- (غُ+زا+دې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- پرېوتونکے- په زمکه یا ښکته اچولے کېدونکے.

**غوزارېدهٔ** :- (غُ+زا+رې+د)-[و_____ غوزارېدنه]

**غوزاړے** :- (غُ+زا+ړَے)-[اس-مذ-ج:ړي]-(۱) ګونګټ- چې د سوټو غونډاري رغړوي- غوزاڼه- غوزاڼے.(۲) د مولخانو یو قسم.

**غوزاڼه** :- (غو+زا+ڼَ)-[و_____ غوزاړے]

**غوزاڼې** :- (غو+زا+ڼې)-[و______ غوزاړے]

**غوزان** :- (غُ+زا+نْ)- د «غوز» (اکوړ) جمع ده.

**غوزان کول** :- (د متاکو غوزانو سره لوبې کول- په دې کښې لوبه کوونکے په یوه وړه شان دائره کښې خپل غوزان جمع کړي- چې ورته پوښی وائي. بیا

هر یو کس خپل خپل خاص جوړ کړے او هوار کړے غټ غوز سره (چې ورته ټیک وائي) د پوښۍ. غوزان د پوښۍ نه د بهر د وېستلو کوشش کوي- بیا هر یو د پوښۍ نه وتے غوز ولي او ګټي ئې.

**غوزجی** :- (غُ+زْ+جَ+ی)-[اس-مو]- وړه غوا- غواګۍ.

**غوزان** :- (غُ+زْ+را+نْ)-[اس]- یو غرئیز بوټے دے. د څاروو خوراك دے.

**غوززے** :- (غو+ز+زَ+ے)-[اس-مو] (۱) یو قسم چینجے دے چې د ګډو بزو وغېره په څرمن کښې پیدا کېږي. (۲) د پیو د شاربلو د مشك هغه سورے چې دغې چینجي جوړ کړے وي او بیا په نري لرګي وغېره بند کړے شوے وي.

**غوزه** :- (غو+زَ)-[اس-مو-ج:زې]- (۱) د پومبې ګل- د پومبې ګل پیالۍ یا خول. (۲) د هر قسم بوټي غونډ شان دانې. (۳) د زنانهٔ د غوږ یو کالے- والی- لښتی- ګوشواره.

**غوزه** :- (غو+زَ)-[اس-مو-ج:زې]- د رېښمو چینجے- پیله- د رېښمو پوکانے.

**غوزه کرکے** :- (غو+زَ+كَ+رْ+كَ)-[اس-مذ-ج:کي]- د مرلخانو یو قسم دے چې په غوړو کښې سور کړے خوړے شي. تاز- بزبزکے- چرچرانکے. (غوزه ګرکے (ګاف سره) هم وائي). (۲) و____ غوازړے.

**غوزی** :- (غُو+زی)-[اس-مو]- داره- د اوبو زور او تیزی سره وتل.

**غوزی وهل** :- (داره وهل.

**غوزے** :- (غُو+زَے)-[اس-مذ-ج:زي]- و____ غوزے.

**غوزے** :- (غو+زَے)-[اس-مذ-ج:زي]- شکرۍ یا ټوکرۍ چې د وښو لښو وغېره نه جوړه شوې وي.

**غوزے** :- (غُو+زَے)-[اس-مذ]- (۱) غاړه- اغوش- غېږ. مجازاً کشتي. (۲) دومره څیز چې په یو غېږ کښې راشي.

**غوزے** :- (غو+زَے)-[اس-مذ-ج:زي]- ګېډۍ- د وښو ګېډۍ.

**غوزے** :- (غُ+زَے)-[اس-مذ-ج:زي]- ګړنګ.

**غوژ** :- (غ+و+ژ)-[و____ غوږ]- د «غوژ» ټولې محاورې د «غوږ» وغېره تر لاندې ورکړې شوے دي.

**غوژه (غوژهٔ)** :- (غ+و+ژَ)-[صف]- محکم- کلك- پایدار- ټینګ- مضبوط.

**غوژه** :- (غو+ژَ)-[اس-مو-ج:ژې]- یو قسم بوټے دے- توره مرغهٔ- رژه

**غوژے** :- (غ+و+ژَے)-[و____ غوږے]

**غوژے** :- (غَو+ژے)-[اس-مذ-ج:ژي]- د اوبو لوے مشك.

**غوږ** :- (غ+وَ+ګ/ ژْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- د بني ادم او حیواناتو هغه عضو چې اواز پرې اوري- ګوش.

**غوږ ازادېدل** :- (و____ غوږونه خلاصېدل]

**غوږ ازګي باسل** :- (غوزازي کول- دبل خبرو ته په پټه غوږ کښېښودل. په پټه د نورو خبرې اورېدل. چې غوږ ازګي باسي هغو مېچنې ونه اټلې. (متل)

**غوږ اېستل(ق)** :- (غوږ نیول- مجازاً: سزا ورکول.

**غوږ اېستنه** :- (____ا+ے+سْ+تَ+نَ)-(۱) اورېدنه- غوږ باسنه. اروېدنه (۲) د نصیحت وغېره مننه. (۳) مجازاً سزا ورکول.

**غوږ اېستنې کول** :- (په غلام د چا د راز خبرې اورېدل.

**غوږ اېستنګ** :- (غ+و+ږ+ا+سْ+تنګ)-[احمص]- و____ غوږ اېستل.

**غوږ اېستنه** :- (غ+وَ+ګ/ ژ+ا+سْ+ت+نَ)-[احمص]- و____ غوږ اېستل.

**غوږ اېستونکے** :- (غ+وَ+ګ/ ژ+ا+سْ+تُو+نْ+کَ)-[اس-فا-ج:کي-(مو):کې]- هغه چې غوږ باسي- هغه چې د چا خبرې په پټه اوري.

**غوږ اېښونے** :- (غ+وَ+ګ/ ژ+ا+ښُ+نَے)[صف]هغه چې خبره مني یا اوري- منونکے.

**غوږبوچے** :- (غ+وَ+ږ-ك+بُو+چے)-[اس-مذ-ج:چي-(مو):چې]- غوږ پرېکړے- بوچ غوږے. د ماشومانو یوه لوبه ده.

**غوږ بوڅے** :- (غ+وَ+ږ+بُو+څے)-[اس-مذ-مو:څۍ- (ج):څي]- (۱) په پټه د چا خبرو ته غوږ نیول. (۲) پس پسے- ګونګوسے

**غوږپرېکړے** :- (غ+وَ+ږ+پر++ک+ړ+ے)-[اس-مذ]- هغه اله چې د غوږ نه پرې خیرے وباسي.

**غوږڅارنه** :- (غ+وَ+ک+سا+رَ+نَ)- غوږنیونه- د چا خبروته په پټه نیول.

**غوږکی** :- (غ+وَ+ږ+كَ+ی)-[د غوړونو د یخنۍ نه د بچ ساتلو دپاره خولۍ.

**غوږکی** :- (غ+وَ+ږ+كَ+ی)[اس-مذ](۱) د غوږ شاته هډوکے (۲) هغه چې د خلکو د پټو خبرونه د اګاه کېدو شوق لري. (۳) هغه چې ډېره رو او په مزه خبره هم اوري.

**غوړوڅے** :- (غ+وَ+ړ+څَے)-[و____ غوړندرویه]

**غوړور** :- (غ+وَ+ړ+ؤ+رْ)-[و____ غوړرو]

**غوړوره** :- (غ+وَ+ړ+ؤ+رَ)-[اس-مو]- د غوړونو ټوپۍ- خولۍ.

**غوړوکے** :- (غ+وَ+ړ+ُك+ے)-[اس-مذ]- پیښله- د څادر ګوټ.

**غوړول** :- (غ+وَ+ړ+ؤ+لْ)-[امص مت]- خبرول- خبره غوړونو ته رسول. په غوږ وهل.

**غوړونګ** :- (غ+وَ+ړ+ونګ)-[احمص]- و____ غوړونه.

**غوړونو** :- ( غ+وَ+ګو/ ژو+نو)- د «غوړونه» اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل دے.

**په غوړونو درنه** :- (____+د+رَ+نَ)-[اپ تر-اس-صف-مو-ج:نې]- هغه ښځه چې لږه شان کڼه وي.

**په غوړونو دروند** :- (____+د+رُو+نْ+د)

**په غوړونو درون** :- (____+د+رُو+نْ)-[اپ تر-اس-صف-مذ-ج:دارنهٔ]- هغه سړے چې څهٔ قدرې کوڼ وي.

**په غوړونو ښهٔ نهٔ لګېدل** :- (۱) څهٔ خبره اورېدلو ته تیار نهٔ «بودل». د څهٔ خبرې په اورېدو خفه کېدل یا زړهٔ ته دوك رسېدل. (۲) اواز- سندره وغېره په اورېدو سره زړهٔ ته تکلیف رسېدل- د ناخوښۍ د څرګندونې دپاره وئیلے شي.

**په غوړونو کښې بوچې یا ګوتې ورکول** :- (د چا خبره بېخي نهٔ اورېدل د چا خبره اورېدلو نه بېخي انکار کول.

**د زړهٔ په غوړونو اورېدل** :- (په ډېره توجه سره اورېدل- په ښه توجه او فکر سره اورېدل.

**د غوړونو باتۍ اېستل** :- (۱) په ښه غور او توجه سره اورېدل. (۲) څهٔ خیال وغېره د زړهٔ نه اېستل.

**د غوړونو تر یو رونو ډوبول ځان** :- (ځان پوره پوره غرقول.

**د غوړونو کچه (سرے)** :- (هغه سړے چې خبره واؤري نو زر پرې یقین وکړي- او تحقیق ئې نهٔ کوي. زر د نورو خلکو په وېنا کښې راتلونکے سړے.

**غوړونه** :- (غ+وَ+ګو/ ژُو+نَ)- د «غوږ» جمع ده.

**غوړونه اباسل – وکښل** :- (غوړونه تاوؤل- سزا ورکول.

**غوړونه اړول** :- (اورېدوته متوجه یا منتظر «بودل»- غوږ نیول.

**غوړونه اړول چاته** :- (غوړونه بوڅول- انتظار کول- د کومې خبرې د اورېدلو

منتظر (بودل)

**غوږونه ازادېدل** :- (و___ غوږ/ غوږونه خلاصېدل.

**غوږونه بروس کول** :-

**غوږونه بروسول** :- (غوږ، نه نېغول- د اورېدلو دپاره پوره طور سره متوجه کېدل.

**غوږونه بوځول** :- (و___ غوږونه تکي کول.

**غوږونه په ارام – قلاره کېدل دچا** :- (د چا د هر وخت د شکايتونو يا غلطو خبرو نه خلاصېدل.

**غوږونه پېچل** :- (و___ غوږونه تاوول).

**غوږونه تاوول** :- (غوږونه مروړل- سزا ورکول- گوشمالي کول. (د هلکانو د سزا يوه طريقه ده چې غوږ يا غوږونه ئې په گوتو کښې ونيسي او تاؤ ئې کړي).

**غوږونه خلاصېدل** :- (۱) غوږ يا غوږونه ازادېدل- د اورېدلو قوت په ځاے کېدل- يا زياتېدل. (۲) خبره په ښۀ شان تر غوږونو رسېدل.

**غوږونه خوړل دچا** :- (۱) ډېر شور کول (۲) يوه خبره (خواست وغېره) چاته بيا بيا کول.

**غوږونه درانۀ ((بودل))** :- (کوڼ ((بودل)) د اورېدلو قوت ئې کم بودل اوچت اورېدل.

**غوږونه سارۀ کېدل** :- (د چا د خبرو د اورېدلو نه خلاصېدل.

**غوږونه سره نزدې – نږدې کول** :- (۱) پټې پټې او ورو ورو خبرې کول (۲) سره جوختېدل- صلاح کېدل.

**غوږونه شړوند نيول** :- (شرمنده ودرېدل- شرساره کېدل- نادمه کېدل

**غوږونه کاڼۀ کول** :- (۱) د چا خبرې له توجه نۀ ورکول- د چا خبره نۀ اورېدل- (۲) د چا د خبرې جواب نۀ ورکول- خاموشي اختيارول (ځان داسې کول لکه چې سوال کونکے خبره نۀ اوري).

**غوږونه مروړل** :- (و___ غوږ، نه تاوَول).

**غوږونه نيول** :- (۱) توبه يا توبې ايستل- د کومې خرابۍ او ناروا خبرې په ليدلو يا اورېدلو د کرکې اظهار کول- (عموماً د توبې د ايستلو په وخت غوږونو له گوتې ور وړے شي). (۲) د مدرسې د هلکانو د سزا يوه طريقه ده- چې هلك د پښو په سر کښېني- لاسونه د پښو د لاندې نه راوباسي او خپل غوږونه پرې نيسي. د غوږونو د نيولو سزا موندل.

**تېرۀ غوږونه** :- (تې+رَ+—)- [پ تر- اس- ج]- هغه غوږونه چې د اورېدلو قوت ئې نسبتاً زيات وي.

**غوږه** :- د ((غوږ)) بدل شکل چې عموماً په مجروري وغېره حالت کښې استعمالېږي.

**تر غوږه کول** :- (ور اورول- (خبره) تر غوږه تېرول.

**تر غوږه کېدل** :- (اورېدل- تر غوږونو رسېدل.

**د غوږه وباسل** :- (په غوږ کښې نه ساتل- هېرول.

**له غوږه ايستل – وېستل** :- (و___ له غوږه تېرول).

**له غوږه تېرول دچا** :- (يوه خبره چاته اورول- خبردار کول.

**غوږۍ** :- (غ+وَ+گ/ ژ+ى)- [اس- مو]- (۱) پس پسارې- پس پسې سرگوشي. (۲) د ښکار کولو ځهره.

**غوږۍ** :- (غ+وَ+گ/ ژ+ى)- [اس- مو]- لويه کټوي. (ظفر)

**غوږے** :- (غ+وَ+گ/ ژَ+ے)- [اس- مذ- ج: ږي]- (۱) د څادر، لوپټې وغېره يو گوټ. (۲) د رباب وغېره ساز هغه وړه شان پلنه غوټۍ د کومې په تاوولو د ساز تارونه کلکولے او نرمولے شي. (۳) هر هغه څيز چې شکل ئې د غوږ په شان وي. (۴) وړوکے شان پټے چې د غرۀ په لمنه کښې يا هواره زمکه کښې وي. کرغاړے- کرغے. (۵) هغه مورې چې د نهر وغېره د اوبو د وتلو دپاره جوړه شوې وي. (۶) وريځو کښې د نمر (نور) ښکاره کېدنه. (۷) د پوستين لټونے (۸) د ليندې دواړه سورنه.

**غوږے تاوَول** :- (د رباب يا دبل کوم دغه شان تاريز ساز غوږے جوړاول او د ساز کلکول.

هر مطرب چې غوږے تاؤ کړي د رباب
په دا تاؤ کښې زړۀ زما کانـــدې کباب (رحمان بابا)

**خر غوږے** :- (خَ+رْ+—) [پ تر- اس- مذ] يو قسم بوټے دے چې د څارو خوراك دے.

**غـوږے** :- (غ+وَ+گ/ ژَے)- [اس- مذ- ج: ږي]- وړوکے شان پټے- د پټې گوټ لکه: يو غوږے لرم- جواري پکښې کرلې دي.

**غوږے** :- (غ+وَ+گ/ ژَے)- [اس- مذ- ج: ږي]- (۱) په غوږ کښې خبرې کونه سر گوشي- پس پسے- (۲) غوږ سره تعلق لرونکے.

**غوږے بودل** :- (غوږ نيولے بودل- په انتظار کښې بودل.

نا اشنا به بهـــره څـــرنگ ځنې مومي
چې مدام ئې په اشنا پسې غوږے دے (رحمان بابا)

**تور غوږے** :- (تُو+رْ+—)- [پ تر- صف- ج: ي]- هغه کس چې د چا نصيحت نه اوري- نانغوته.

**خبر غوږے** :- (خَ+بَ+رْ+—)- [و___ غوږ ابېښونے).

**د ټيليفون غوږے** :- (د ټيليفون د الې هغه حصه چې غوږ ته نيولے شي. مجازاً: د ټيليفون هغه اله چې يو سر ئې غوږ ته نيوے شي او بل سر ئې خولې ته مخامخ وي- د ټيليفون ريسور.

**غوږپچنه** :- (غ+وَ+ژ+پ+چ+نْ+نَ)- [و___ غوږپچنه]

**غوږپچنه** :- (غ+وَ+ژ+پ+چ+نَ)- [اس- مو- ج: نې]- د غوږ شا- د غوږ شاتنۍ برخه.

**غوږپخے** :- (غ+وَ+گ/ ژ+پ+سے)- [اس- مذ- ج: څي]- غوږ کېښودنه- د بل خبرې په پټه اورېدنه.

**غوږېدل** :- (غ+وَ+گ/ ژ+ې+د+ل)- [مص]- (۱) اورېدل- تر غوږه رسېدل. خبرېدل- اگاه کېدل.

په اسلام نۀ وي غوږېدلے
نوم ئـــې نه وي اورېدلے (اسرارالعارفين)

(۲) گمان کول- ځکېدل.

**غوږېدلے** :- (غ+وَ+گ/ ژ+ې+د+لَے)- [اس- مف- ج: لي]- خبردار- اگاه.

**غوږېدنه** :- (غ+وَ+گ/ ژ+ې+د+نَ)- [حمص]- (۱) اورېدنه- اروېدنه. (۲) خبرېدنه- اگاه کېدنه. (۳) اروني- شنوائي.

**غـوږيز** :- (غّ+وَ+گ/ ژ+ي+زْ)- [صف- مذ- مو: ه]- (۱) غوږونه لرونکے- غوږونه واله- (۲) اورېدنے- شنوا.

**غـوږين** :- (غّ+وَ+گ/ ژ+ي+نْ)- [صف]- (۱) غوږونو واله- (۲) هغه څيز چې د غوږ په شان څۀ څيز لري.

**غوږين ټوپک** :- (—+ټو+پَ+كْ)- [پ تر- اس- مذ]- د ټوپك يو قسم چې يولس کارتوسونه د گولو پکښې کېښودے شي- او د زخې نه يو طرف او بل طرف د وړو وړو غوږونو په شان ټکرې په کښې لگېدلې وي- دې ټوپك ته يولس ډزې او ((تهري ناټ تهري)) ټوپك هم وايه شي.

**غوسکے** :- (غو+س+كَ+ے)- [اس- مع]- په بلوچستان کښې د ((زيارت)) پخوانے نوم.

**غوشاك** :- (غُ+شا+كْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- غوشايهٔ- سُوټې.

**غوشايي** :- (غُ+شا+يي)-[اس-جم]- غوشي- سوټې- غوشياړې.

**غوشوے** :- (غُ+ش+و+ے)-[غوشايے- سوټې- غوشياړې.

**غوشياړې** :- (غُ+شْ+يا+ړې)-[اس-جم]- غوشې- سُوټې.

**غوشيان** :- (غُ+شْ+يا+نْ)-[اس-ج]- د غوشي غوشوي جمع ده.

**غوشېړ** :- (غُ+شې+ړ)-[اس-مذ-ج:ونه]- د غوشايو نه ډك ځاے. مجازاً ناپاكه ګنده ځاے- ډېران.

**غوشيے** :- (غو+شْ+يے)-[اس-جم]- غوشايے- سُوټې- غوشوے.

**غوشيړ** :- (غو+شْ+ي+ړْ)

**غوشيړے** :- (غو+شْ+يَ+ړے)- غوشائے- غوشو.

**غوښ** :- (غو+ښْ)-[و_____ غوښت]

**غوښ برمه كول** :- (غوښت په برمه سوري كول- د مچ په كونه ځمځۍ منډل- د ډېر زيات شوم سړي په حقله وئيلے شي.

**غوښت** :- (غ+ؤ+شْ+تْ)-[احمص]- غوښتنه- خواست- خواهش.

**غوښت كېدل** :- (مص-تر)- خواست كېدل- د څهٔ څيز طلب كېدل.

پس له مرګه به حساب له سړي غوښت شي
په انداز او پـه مقـــــدار د دې دنيـا (رحمان بابا)

**غوښت** :- (غـو+شْ+ت)-[اس-جم]- يو قم غله ده چې ډېرې نرۍ نرۍ دانې لري- ارزن. (عموماً مرزانو له د خوراك په طور وركولے شي).

تـهٔ چـې خپله بې عقلي، هوښياري بولې
كاشكې بيا لومې د غوښتو په نرخ شولې (رحمان بابا)

**غوښت وركول** :- (مرز له غوښت وركول. مرز مړول.

**غونډك غوښت** :- (غُو+نْ+ډ+كْ+ـــ)-[اپ تر-اس-جم]- د غوښتو يو قسم دے- چې د غوښتو په شان وي- او جنګي مرزانو له وركولے شي.

**غوښتل** :- (غو+ښْ+تُ+لْ)-[مص]- (۱) غوارل- خواست كول- طلب كول. (۲) خواهش لرل- ارزولرل- (۳) لټول- لټون كول- تلاش كول.

څهٔ حاجت دے چې وبل خواته ئې غوارم
په خپل كور كښې همكنار دے رب زما (رحمان بابا)

**غوښتل كېدل** :- (غوښتلے كېدل- مطالبه كېدل- تقاضا كېدل.

**اجازت غوښتل** :- (اِ+جا+زَ+ت+ـــ)

**اجازه غوښتل** :- (اِ+جا+زَ+ـــ)- د څهٔ كار كولو دپاره رخصت غوښتل.

**امان غوښتل** :- (اَ+ما+نْ+ـــ)- د سر امان غوښتل- د خپل سر (د قتل كېدو د بچ كېدلو) دپاره درخواست كول.

**بخښنـه غوښـتل** :- (بَ+خْ+نَ+ـــ) يـا (بَ+خْ+ش+نَ- معـافي غوښـتل- عفـو غوښتل.

**پناه غوښتل** :- (پَ+نا+(ه)+ـــ)- د كمزوري سړي د دښمنانو نه د بچ كېدلو دپاره د چا زورَور حفاظت غوښتل.

**جينۍ غوښتل** :- (د خپل زوي ورور وغېره (هلك) دپاره د چا لور، خور غوښتل- د جينۍ رشته غوښتل.

**څهٔ غوښتل نور د خداے نه** :- (مقصد پوره كېدل- مقصود حاصلېدل. لكه: زوے دې نوكر شهٔ تهٔ نور د خداے نه څهٔ غوارې؟

**د چانه څهٔ غوښتل** :- (د چا سره غرض لرل- چاسره كار لرل. لكه: تهٔ مانه څهٔ غوارې؟- عموماً طنزاً وئيلے شي. يا د چا د كمزورۍ د ښرګندولو په حقله وئيلے شي لكه: تهٔ د فلاني نه څهٔ غوارې؟! يعنې فلانے سړے ستا دپاره هېڅ نهٔ شي كولے.

**خېرغوښتل** :- (خَ+ر+ـــ)-(۱) ښېګړه غوښتل- ښه غوښتل- د خداے نه- ښهٔ پېښه غوښتل- (۲) خېرات- صدقه غوښتل. خصوصاً در په در ګرځېدل او خېر خېرات يا ډوډۍ ټوك غوښتل. فقير كېدل- ګدايي كول.

**د خداے نه غوښتل** :- (۱) معنې واضحې دي. (۲) محاورةً: داسې كار كېدل د كوم نه چې د يو سړي د اول نه خواهش او ارزو وي. لكه: ما خو دا كار د خداے نه غوښته.

**ډېول غوښتل** :-

**وهل غوښتل** :- (د سزا مستوجب ګرځېدل- د غلط كار يا خبرې وغېره په وجه د سزا لائق ګرځېدل.

**رخصت غوښتل** :- (رُ+خْ+صَ+تْ+ـــ)-(۱) د تللو اجازت غوښتل. د جدا كېدو دپاره اجازت غوښتل. (۲) اجازت غوښتل.

**رشته غوښتل** :- (رِ+شْ+تَ+ـــ)- د چانه د لور، خور رشته غوښتل. د هلك دپاره جينۍ غوښتل.

**ښځه غوښتل** :- (ښَ+ځَ+ـــ)- وادهٔ غوښتل- كومې ښځې سره وادهٔ كول غوښتل.

**كومك غوښتل** :- (كو+مَ+كْ+ـــ)- امداد غوښتل- مرسته غوښتل.

**لوړ قيمت غوښتل** :- (لُ+ړْ+قِي+مَ+تْ+ـــ)- زياته بيعه غوښتل- د زيات قيمت طلب كول.

**مهلت غوښتل** :- (مُ+لَ+تْ+ـــ)- وخت غوښتل- وار غوښتل.

**غوښتلے** :- (غُ+ خ/ شْ+تَ+لَے)-[امف-مذ-ج:لي]- (۱) خواست كړے. طلب كړے. (۲) خواهش لرلے- ارزو لرلے.

**غوښتن** :- (غُ+خ/ شْ+ت+نْ)-[احمص]- غوښتنه- طلب- مطالبه- سوال.

**غوښتنه** :- (غو+ خ/ شْ+ت+نَ)-[احمص]- (۱) خواست- طلب- مطالبه. سوال- (۲) خواهش- ارزو. (۳) مقصد- مرام- مقصود.

**د زړهٔ غوښتنه** :- (دَ+زْ+ړ+ـــ)- د زړهٔ خواهش- د زړهٔ ارزو.

**غوښتو** :- (د (غوښت)) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شكل دے

**د غوښتو غوبل كول** :- (ډېر زيات لتاړول- ډېر زيات وهل ټكول.

**غوښتونكے** :- (غُ+ښْ+تُو+نْ+كَے)-[اس-فا-مذ-ج:كي]- طلب كوونكے مطالبه كوونكے- سوال كوونكے.

**غوښـتونكے** :- (غُ+ خ/ شْ+تُـو+نْ+كَے)-[اس-مـف-مـذ-ج:نـي]- (۱) غوښـتلے كېدونكے- طلب كېدونكے. (۲) غوښتونكے- طلب كوونكے.

**غوښته** :- (غُ+ خ/ شْ+تَ)-[احمص]- (۱) مطالبه- طلب- غوارنه- دعا. (۲) خواهش- ارزو. (۳) لټون- تلاش- لټونه.

**په غوښته** :- (په لټون- په تلاش.

د كېميا د بـــوټي ګل كلـــه مُوندهٔ شي
چې د ښېښو تلې ګلګون نهٔ شي په غوښته (خوشحال)

**غوښتوے** :- (غُ+ښْ+تَے)[اس-مف-مذ-ج:ي]- غوښتلے شوے- په سوال اخستے شوے

**غوښتې** :- (غُ+ خ/ شْ+تې)-(۱) د (غوښته) جمع ده. مطالبې- خواهشونه (۲) د (غوښته) اضافي او مجروي وغېره (متغير) شكل دے.

**غوښـلن** :- (غٌ+ خ/ شْ+ل+نْ)-[اصف-مذ-مو:ه]- غوښې والـه- غـټ- څـورب. غوښن.

**غوښن** :- (غٌ+وَ+ خ/ ش+نْ)-[اصف-مذ-مو:ه]- (۱) غوښلن- هغه چې بدن كښې

ئې غوښه زياته وي- غټ- څورب. (۲) مالدار- شته من- دولت مند.

**غوښور** :- (غَ+ خ/ ښَ+ؤ+رْ)-[اصف-مذ] - غوښه ور- غوښن- څورب. غټ.

**غوښه** :- (غَ+وَ+ خ/ ښَ)-[اس-مو-ج:ښې] - ګوشت.

**غوښه اخيستل** :- (مص تر) (۱) غوښه په بيعه اخيستل. (۲) مجازاً: غټېدل- په بدن کښې غوښه زياتېدل- غټېدل. (۳) مالداره کېدل- شته من کېدل.

**غوښه اوبهٔ کېدل** :- (مانده کېدل- لاغر کېدل- کمزوري کېدل- ټيټېدل.

**غوښه او چاړهٔ** :- (ډېر سخت دښمنان.

**غوښه وَر** :- (و____ غوښلن)

**اومه غوښه** :- (أُو+مَ+—)-[اس-مذ-ج:اومې غوښې] - (۱) کچه غوښه. ناپخه کړې غوښه- (۲) نرمه او نازکه غوښه.

**د خنزير غوښه شه** :- (و____ د سور غوښه شه)

**د سُور غوښه** :- (دَ+سُو+رْ+—)- حرام څيز- مطلق ناروا څيز.

**د سُور غوښه شه** :- (د انکار دپاره د قسم په طور وئيلې شي چې دا څيز ما نهٔ دے اخستے- لکه څنګه چې د سور غوښه مطلق حرامه ده. دغه شان دغه څيز هم په ما حرام دے.

**د سُور غوښه ورکول چاله** :- (رشوت ورکول- بډې ورکول.

**غټه غوښه** :- (غَ+ټَ+—)-[اس-مو-ج:غوښې] - د لويو څاروو لکه غواؤ- مېښو وغېره غوښه.

**نرۍ غوښه** :- (نَ+رِ+ۍ+—)-[اس-مو-ج:خوښې] - د ګډې يا د بزې غوښه- وړه غوښه.

**نرۍ غوښه ورکول** :- (د نري څاروي يعنې ګډان- بزې- چېلۍ حلالول.

**وچه غوښه** :- (ؤ+چَ+—)-[اپ تر-اس-مو] - وچه کړې غوښه.

**وريته غوښه** :- (و+رِي+تَ+—)-[اس-مو-ج: ورتې غوښې] - هغه غوښه چې د اور د پاسه په نيولو پخه شوې وي.

**وړه غوښه** :- (وَ+ړَ+—)-[اپ تر-اس-مو-ج:وړې غوښې] - د ګډو بزو غوښه- نرۍ غوښه.

**غوښو** :- (د ((غوښې)) (جمع) اضافي او مجروي وغېره (متغير) شکل.

**د ځان په غوښو اخته کېدل** :- (ځان ته ډېر زيات فکر کول. د خپل ځان دپاره سوچ کول.

هسې زهٔ د ځان په غوښو عشق اخته کړم
لکه نهٔ خېژي له خانه د پمن لاس (حميد بابا)

**ديوبل غوښو ته کېښناستل** :- (کنايه: ډېره زياته دښمني ((بودل))- ډېر زيات مخالفت ((بودل))- د يوبل وينو ته تږي ((بودل)).

**غوښې** :- (غَ+وَ+ خ/ شې)-(۱) د ((غوښه)) اضافي يا مجروري وغېره (متغير) شکل دے. (۲) د ((غوښه)) جمع ده.

**غوښې اوبهٔ کول** :- (کنايه: ډېر زيات محنت او خواري کول- ډېر زيات زيار کښل.

**غوښې خوړل دچا** :- (غيبت کول- پشې شا د چا عيبونه بيانول.

**غوښې ژوول** :- (غوښې خوړل- غوښې شوکول- انتهايي ظلم جور کول

ظ ظالم مه شه تندخويه
د مظلوم غوښې مه ژويه (حافظ)

**پيښو د غوښې څوکېداره کول** :- (داسې سړے د څهٔ څيز د حفاظت دپاره مقررول- څوک چې په خپله د دغې څيز خواهشمند يا غل وي.

**د ځان غوښې خوړل** :- (دومره ډېر محنت يا خواري يا کوشش او کار کول چې بدن مانده شي. سخت محنت کول- ډېر زيات کار کول ډېر زيات کېدل- اول وخوره د ځان غوښې بيا وخوره د ښکار غوښې. (متل)

**غوښے** :- (غو+ خ/ شَے)-[و____ غوښے]

**غوښين** :- (غَ+وَ+شي+نْ)-[اصف-مذ] - و____ غوښن.

**غوغا** :- (غَو+غا)-[ف-اس-مو-ج:ګانې] - (۱) شور- زوږ- شورغاؤ. شور ماشور- هله ګوله- چغې سورې.

نن مې خوا لره راغلې محبوبا ده
په هر لوري د عالم پسې غوغا ده (خواجه محمد)

(۲) فتنه فساد- شور و شر.

زهر ښهٔ وي چې په صلح په صلاح وي
نه شکرې په فتنه او په غوغا (رحمان بابا)

**غوغا جوړول** :- (شور زوږ پورته کول- هله ګوله جوړول- نعرې سورې پورته کول.

**غوغا کېدل** :- (شور زوږ (پورته) کېدل- غږ خورېدل- شهرت موندل.

**غوک** :- (غُو+کْ)-[ف-اس-مذ] - چيندخ- چيندخه- چينګښه.

**غول** :- (غَ+ؤ+لْ)-[و____ غُل]

**غول** :- (غو+لْ)-[اس-مذ] - د غنمو د بوجۍ شلېدلے ځاے چې غنم ترې ښکته (په زمکه) راتوئېږي.

**غول** :- (غو+لْ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه] - (۱) ټولے- ګڼه ګوڼه- ګروه- ډله. (۲) د مرغو مرغانو سېل. (۳) لښکر.

**غول کېدل** :- (راټولېدل- جمعيت جوړېدل.

د کينې غصې لښکر په هجوم ټول شو
يو منت د نازنين په غولي غول شو (نيرنګ عشق)

**غول** :- (غو+لْ)-[اس-مذ-ج:ونه] - ګرداب- غولۍ.

په لاهو لاهو خيال له غوله ووزي
چې مې شي د ډېرو اوښکو په طوفان ګډې (حسېن)

**غول** :- (غُو+لْ)-[ع-اس-مذ] - يو قسم خيالي مخلوق. پيريان- ديوان.

لکه غول په بيابان زندګانې کړې
فراغت وے د دې دهر له راغليو (حافظ)

**غول وغال** :- (پيريان- دېوان- بلاګانې.

نهٔ انصاف شته نه تميز نه نور د عدل
په دربار ئې تاريکي ده غول و غال (خوشحال)

**غولاټے** :- (غُ+لا+ټے)-[اصف-مذ-مو: ټې] - غلاوڼ- ويرندوکے- بزدله.

چې د تورو په برېښنا ئې وار خطا شي
مور ئې مه وے په هغه غولاټي لنګه (يونس)

**غلانځه** :- (غُ+لا+نْ+زَ)-[اس-مو-ج:ځې] - (۱) د حيواناتو هغه عضو چې پې پکښې جمع کېږي. د حيواناتو تے. (۲) يو قسم بوټے دے چې ابي رنګې ګلونه کوي- او د څاروو خوراک دے.

**غولاوڼ** :- (غُ+لا+وَ+نْ+ړْ)-[اس-صف-مذ-ج:ان-(مو:ه)] - ويرندوکے- غولاټے- ډرن- ټرو- بزدله.

**غولبند** :- (غ+ؤ+لْ+بَ+نْ+د)-[ق-اس-مذ] - يو قسم لوبه ده. چې يوه دائره په يو څو برخو ووېشتلې شي او بيا دوه کسان دغه لوبه په دوو دوو کاڼو کوي.

**غولبنګے** :- (غُ+لْ+بَ+نْ+ګَ+ۍ)-[اس-مو] - د بولو ځاے- ټټے. بيت الخلا.

**غولبه** :- (غُ+لْ+بَ)-[اس-مو-ج:بې] - قُلبه.

**غولغوله** :- (و____ غلغله).

**غولک** :- (غو+لَ+كْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- (۱) يو خاورين لوښے- چې سر ئې په څرمن بند کړے شي- او په دغه څرمن کښې سورے وکړے شي. او بيا په دې کښې پيسې ټکې اچولے شي. زمرکے. (احمدزئی) (۲) هغه صندوق وغيره چې پيسې ټکې پکښې اچولے شي.

**غولکورے** :- (غو+لْ+کو+رَ+ے)-[اس-مذ-ج:ري]- د غوږ نرمه- د غوږ لاندينۍ پسته برخه.

**غولکه** :- (غو+لَ+كَ)-[اس-مو-ج:کې]- (۱) د لينديۍ په جيۍ (ژۍ) کښې هغه ځاے چې د غشي (يا گاڼي) دپاره جوړ کړے شوے وي. پته کاسۍ. (۲) هغه لينده چې کاڼي يا گيټې وغېره پرې ويشتے شي.

**غولمرگ** :- (غُ+لْ+مَ+رْ+گْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- (۱) هغه نَو يا زوے چې په تنکۍ يا په زخم کښې (دننه) وي. (۲) د تنکۍ يا زخم پړسوب ته هم وائي.

**غولمه** :- (غُ+لْ+مَ)-[و_____ غولنه]

**غولن** :- (غُ+لْ+نْ)-[و_______ غولاوڼ]

**غولنج** :- (غُ+لَ+نْ+جْ)-[اس-مذ]- د ((قولنج)) بدل شکل دے- يو قسم دړد دے چې ((قولون)) نومې قلمه کښې پيدا کېږي.(انگ: اپنډي سائي ټيس)

**غولنگ** :- (غو+لْ+نْ+گْ)-[اس-مذ]- د يو غدود نوم دے. د غبانډي يا د غلنگ غدود- د مرغړي غدود.

**غولنگه** :- (غُ+لَ+نْ+گَ)-[اس-مو-ج:کې]- غولوونکے- هغه سُور پړسوب چې د سترگې په پړده کښې پيدا کېږي. غولنه.

**غولنه** :- (غُ+لْ+نَ)-[اس-مو-ج:نې]- غولوونکے- هغه سور شان پړسوب چې د سترگې په پړده کښې پيدا کېږي- غولوونے- غولنے.

**غولنه** :- (غُ+لْ+نَ)- د ((غولن)) تانيث دے.

**غولنے** :- (غُ+لْ+نے)-[و_______ غولنگه]

**غولول** :- (غُ+لَ+وُ+لْ)-[امص]- تېر ايستل- خطا ويستل- دوکه کول. فريب ورکول- تېر ورکول.

**ځان غولول** :- (۱) ځان له دوکه ورکول- سره د پوهې يو نقصان ده يا غلط کار کول. (۲) په څۀ کار خپل ځان مغشولول. پام بدلول.

**د شيطان غولول** :- (دَ+شَے+طا+نْ+—)احتلام کېدل- په خوب کښې اودس اوړېدل.

**غولونه** :- (غُ+لَ+وْ+نَ)[حمص]تېرېستنه- تېرباسنه- دوکه- ورکونه فريب ورکونه.

**غولوونکے** :- (غُ+لْ+وُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]- دوکه کوونکے- فريبي- دوکه مار- تېرايستونکے.

**غولونکے جامې / کالي**:- (داسې جامې (کالي) چې د اغوستونکي اصليت پرې پټ شي.

**غولونکي** :- د ((غولونکے)) جمع ده.

**غوله** :- (غُ+وُ+لَ)-[کلمه]- تکيه کلام دے. غولے- دبل مخاطب کولو معنیٰ ورکوي. (د ((گله)) بدل شکل دے). غوله: يو کار خو راله وکه.

**غوله** :- (غو+لَ)-[اس-مو-ج:لې]- (۱) د لرگي غونډ يا ځته. (۲) د اوبو يا د پيئو د اندازه کولو نخښه يا پيمانه.

**غوله کمانه** :- (غُ+لَ+کَ+ما+نَ)-[اپ تر-اس-مو-ج:نې]- ((ل)) او ((ر)) په خپله کښې بدلېږي.

**غولۍ** :- (غُ+لَ+ۍ)- (۱) گرداب- په سيند (وغېره) کښې هغه ځاے چرته چې اوبۀ تاوېږي. غُلۍ. (۲) د خلکو بې نظمه غونډه. غېر منظم فوځ.

**غولۍ غولۍ** :- (۱) چورليدونکے- گرداب. (۲) تاؤ را تاؤ. لکه: مار ئې په سينه غولۍ غولۍ پروت ؤ.

**غولۍ غولۍ کېدل** :- (۱) د خلکو يو ځاے بل ځاے سره غونډېدل. د خلکو ځاے په ځاے (بې نظمۍ سره) جمع کېدل. (۲) په سيند کښې ځاے په ځاے گردابونه جوړېدل- د سيند په چپو کېدل.

**غولے** :- (غو+لَے)-[اس-مذ-ج:لي]- انگڼ- په کور کښې د کوټو په مخکښې ويړ ميدان- صحن- انگړ.

**غولے په چا تنگول** :- (محاوره_ دنيا په چا تنگول. مجازاً: ډېر زيات تنگول.

**غولے تنگول په چا** :- (راگېرول- تنگول- تکليف ورکول- مغلوب کول. لکه: په فلاني ئې غولے تنگ کړو. اوس عفوه غواړي.

**غولے تنگېدل په چا** :- (راگېرېدل- عاجز کېدل- مغلوب کېدل. لکه: په فلاني اوس غولے تنگ شو. نو راغے ماته زارۍ کوي.

**غولے** :- (غو+لَے)-[اس-مذ-ج:لي]- خوي- عادت.

**غولے اخېستل** :- (اموخته کېدل- عادت اخېستل- اوږدېدل.

**غولي** :- (غو+لي)-(۱) د ((غولے)) جمع ده. (۲) د ((غولے)) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دے.

ځنې خالي شول د دنيا غولي
وگور ته لاړل اکثر همځولي (سعيد)

**په غولي کښېناستل** :- (په کور کښې کښېناستل. مجازاً: د چا په حواله کېدل.

ځوک په سترگو غړوي له غمه نولي
چې ئې کښېني ملائک د غم په غولي (حميدبابا)

**په هر غولي ولاړ** :- (په هر انگڼ کښې ولاړ يا موجود. مجازاً: په هر ځاے کښې موجود- له هره ځايه

درسته شپه ئې په هر غولي زۀ ولاړ ناري وهمه
چې اے خلکو عېب مې نشته که مستي کړم مست د دۀ يم
(خوشحال)

**غولېچ** :- (غُ+لي+چْ)-[اصف-مذ-مو:ه]- قوي- طاقتور- توانا.

خدايه امان را ،له هغه بدبخته غولېچه
پر کمـــزور باندې چې ظلم کا په لېچه (لواڼې)

**غولېدل** :- (غُ+لي+د+لْ)-[امص]- تېروتل- فريب خوړل- دوکه کېدل.

**غولېدنه** :- (غُ+لي+د+نَ)-[حمص]- تېروتنه- دوکه کېدنه- فريب خوړنه.

**غولي ناسته** :- (غو+لي+نا+سْ+تَ)-[ق-پ تر-اس-مو]- (۱) په غولي کښې کښېناسته. (۲) مجازاً: د زوم په اول ځل د سخر کره راتلنه د زوم پېښې ارته.

**غولي ناسته کول** :- (د زوم د طرفه سخر خواښې کور ته تلنه.

**غوماسے** :- (غُ+ما+سے)-[اس-مذ-ج:سي]- ماشے- غوناشه- غوناشے.

سپين پـرتوگ ازادې خولې
ماله غوماسي کښې راوړې (غاړه)

**غوماشه** :- (غُو+ما+شَ)-[اس-مو-ج:شې]-ماشے. (ف: پشه)

**غوماشے** :- (غُ+ما+شے)-[و_____ غوماسے]

**غومبار** :- (غُ+مْ+با+رْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- (۱) گور لوگے. (۲) داسې اواز چې صفا تميز ئې نۀ کېږي.

**غومباره** :- (غُ+مْ+با+رَ)-[اس-مو-ج:رې]- (۱) د توپو يو وړوکے قسم. (۲) پاړ څوب- پړسوب- کوم چې د مچۍ ډمبرې په چيچلو پيدا شي.

**غومبر** :- (غُ+م+ب+ُر)-[اس-مذ-ج:ونه]- (۱) د کونترو اواز (چې د مستۍ په وخت کوي). (۲) د ګېنو بني ادمانو د کونترو په شان اواز- (د اتڼ په وخت)

**غومبر اچول** :- (په اتڼ کښې د مستۍ اواز ایستل. اتڼ اچول.

**غومبړ** :- (غو+م+بَ+ړ)-[و___ غومبر]

**غومبړ وهل** :- [و______ غومبر اچول]

**غومبسکه** :- (غو+م+ب+س+کَ)-[اس-مو-ج:کې]- غومبسه. مچۍ. پړخوب.

**غومبسه** :- (غُ+م+ب+سَ)-[اس-مو-ج:سې]- مچۍ.

وړې مچـۍ ئــــې وګڼــم د شهـــدو بې ازاره
لشـے را څوخې کړي د سرو غومبسوګګ و خیژي (حافظ)

**غومبسۍ** :- (غُو+م+ب+ُس+ۍ)-[اس-مو]- د ګبین ګګ.

**غومبک** :- (غُو+م+ب+َکْ)-[اس-مذ]- یو قسم وابښهٔ دي چې نرم او سوربخن رنګ لري. عموماً په جوماعتونو کښې غوړلے شي. غروبښته.

**غومبورے** :- (غُ+م+بُو+رَے)[اس-مذ-ج:رې]بارخو- رخساره- غومبرے- اننګے.

**غومبه** :- (غُ+م+بَ)-[اس-مو-ج:بې]- (۱) پړخوب. (۲) یو قسم پړخوب چې اکثر په مرۍ یا په سینه راخېژي. بوغمه.

**غومے** :- (غُو+م+ۍ)-[صف-مذ]- مندرے- کم قدواله- کوتاه قد- غونډمونډ.

**غومے** :- (غُو+مَے)-[اس-مذ-ج:مې]- یو قسم بوټے دے چې زېړګلونه کوي. شریے.

**غومېدل** :- (غُ+مې+د+لْ)-[مص]- بد رد وئیل- چاته سختې او پېغورېزې خبرې کول.

**غومېدونکے** :- (غُ+مې+دُو+نْ+کَے)-[فا-ع-مذ-ج:کي]- بد رد ویونکے چاته سختې او پېغورېزې خبرې کونکے- ګوښېدونکے.

**غوناجی** :- (غُ+نا+جَ+ی)-[اس-مو]- څوانه غوا- څوانۍ ته رسېدونکې غوا.

**غوناره** :- (غُ+نا+رَ)-[اس-مذ-ج:رې]- یو غرئیز بوټے دے، چې ډېر خوشبویه وي.

**غونتۍ** :- (غُو+نْ+تَ+ۍ)-[اس-مذ]- ګرینګ- چې د ماشومانو د پوزې نه را زوړند وي.

**غونج** :- (غُ+نْ+ج)-[-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) د وښو لویه ترنګړ چې په اوبن باورلے شي. (۲) د غنمو اوربشو یوه ګېډۍ یا د ګېډۍ قدرې لو کړې ډکي چې یوځاے کېښودے شي او بیا وروستو را جمع او ټوپ کړے شي او درمن ترې جوړ شي.

**غونج** :- (غ+وَ+نْ+جْ)-[صف-مذ-ج:ه]- غونډ مونډ شوے- راټول شوے- کړونج شوے- چیچړ شوے.

**غونج منج /مونج** :- (___+م+نْ+ج)-[صف-مذ-مو:ه]- (۱) غونډ مونډ- کړونج شوے. (۲) ګړونجې ګونجې. (۳) وچ او مانده.

**غونجا** :- (غو+نْ+جا)-[اس-مذ-ج:ګان]سست پست سړے- د کار نه ارخ کوونکے.

**غونجول** :- (غُو+نْ+جَ+ؤ+لْ)-[مص](۱) غونډمونډ کول. (۲) د غنمو یا د اوربشو ګېډۍ ځاے په ځاے ډېري کول- د ګېډو ځاے په ځاے ټېوونه جوړول.

**غونجونکے** :- (غ+َ+نْ+جَ+وُو+نْ+کَے)-[فا-ع-مذ-ج:کي]- (۱) غونډ مونډ کوونکے- را ګړونجوونکے- (۲) د غنمو یا د اوربشو ګېډۍ ځاے په ځاے ډېري کوونکے. (۳) کار نهٔ کوونکے- بېکاره.

**غونجی** :- (غُ+نْ+جَ+ی)-[اس-مذ]- ګونجې- اټه- پوټۍ.

**غونچے** :- (غُ+نْ+جَے)-[اس-مذ-ج:جې]- یو غرئیزه اغزنه ګیه ونه.

**غونچے غنج** :- (غُ+نْ+جے+غُ+نْ+ج)-[صف]- غولۍ غولۍ- ټولې ټولې ډېره ګڼه.

**غونځابیے** :- (غُ+نْ+زا+شَے)-[اس-مذ-ج:بیې]- (۱) متیایۍ یو قسم دے- (۲) په کور کښې جوړه شوې متیایي چې د موټي کباب په سېر وي. (۳) د ډاندت مار د لوے الې (میل سلایي) پړے.

**غونځرکے** :- (غ+ؤ+نْ+زَ+رْ+کَے)-[اس-مذ-ج:کي]- نوے زېږېدلے ګډ ورے- (د لس پینځلسو ورځو ورغومے)

**غونځول** :- (غُ+نْ+زَ+ؤ+لْ)-[مص]- یو اړخ بل اړخ اړول- خوزول را خوزول- حرکت ورکول.

**غونځه** :- (غ+ؤ+نْ+زَ)-[اس-مو-ج:ځې]- د یوې مشهورې ونې نوم چې سرې داني کوي. (ف: دولانه)

**غونځه** :- (غُ+نْ+زَ)-[اس-مو-ج:ځې]- ګړونجه- شکن.

**غونځه** :- (غُ+نْ+زَ)-[اس-مو-ج:ځې]- حرکت- خوزونه راخوزونه.

**غونځے** :- (غُ+نْ+زَے)-[اس-مذ-ج:ځي]- لویه بوجۍ- غُوندے.

**غونچه** :- (غُ+نْ+چَ)-[و_____ غنچه]

**غوند** :- (غُو+نْ+د)-[اس-مو-ج:دې]- وهلې شوې وړۍ.

**غوندرکے** :- (غُو+نْ+د+ر+کَے)-[صف-مذ-مو:کۍ]- مندرے- پسته قامت.

**غونده** :- (غُو+نْ+دَ)-[اس-مو-ج:دې]- وهلې شوې وړۍ.

**غوندې** :- (غُ+نْ+د)-[حرف]- (۱) په شان- په رنګ- هسې- په ډول. لکه: د زمرې غوندې ئې پرې ور ودانګل. (۲) شان- اندازه. لکه: لږې غوندې وریژې ئې پخې کړې.

**غوندې** :- (غُ+نْ+دې)-[الاحقه]- لاحقه ده- دبل لفظ نه وروستو لګولے شي او د (په شان په ډول وغېره معنې ورکوي. عموماً (ما) او (تا) سره لګي. لکه: ماغوندې او تا غوندې سړے څهٔ کولے شي.

**د غوندې ستن** :- (___س+ت+نْ)-[اس-مو-ج:نې]- هغه لویه او غټه ستن چې د غوندې خولهٔ پرې ګنډلې شي یا د غوندې مرمت پرې کولې شي.

**غونډ** :- (غُ+نْ+ډ)-[صف-مذ-مو:ه]-(۱) ګول- مدور. (۲) راټول- جمع. (۳) هغه غونډ ارے کوم چې ګونګټ د غلو سوټونه جوړوي.

په زمین به خالــــي نهٔ ووزې ګونګټه
پلیت غونډ دې بې فائدې رغړوې څلهٔ (حافظ)

**غونډ ژبے** :- (___ژ+بَے)-[پ تر-صف]- هغه چې په خبرو کښې ئې ژبه انښلې- ترټرے- ګنګوړے.

د غونډ ژبو شاعرانو د خـولې نه دے
څکه هسې رنګ صفا دے دا حدیث (رحمان بابا)

**غونډ سرے** :- (___س+رَے)-[پ تر-صف]- هغه چې سر ئې ګول وي

**غونډ سرے** :- (___س+رَے)-[ق-اس-مذ]- د (اوبن مرغۍ) په شان یو بوټے دے چې سپین ګلونه کوي- د دې بوټي لښتې لچکداري وي- او غونډ بدے شي.

**غونډمونډ** :- (___م+نْ+ډ)

**غونډمنډ** :- (___م+نْ+ډ)-[پ- تر-صف-مذ-مو:ه]- (۱) ښائسته- ښکلے. (۲) غټ پټ او سور سپین. (ق)

**غونډ وربوزے** :- (___ؤ+ر+بُو+زَے)- یو قسم بیماري ده چې د کابل په

اصطلاح کښې ورته (کله بندي) او کله چرك وائي.

**غونډ** :- (غُ+نْ+ډ)-[ق-اس-مذ] - جماعت- په عسکري اصطلاح کښې د فوځ د یو خاص شمېر دسته.

**غونډاري** :- (غُ+نْ+ډا+رَ+ی)-[ق-اس-مذ] - کلچه- کلچه نان- ټکی.

**غونډارے** :- (غُ+نْ+ډا+رَے)-[اس-مذ-ج:ري] - (۱) غونډ څیز- مدور څیز- ګول څیز. (۲) غونډ شان څیز- غونډ شان پړسوب چې په بدن کښې پیدا شي.

**غونډ کول** :- (د کوم نرم څیز له غونډ شکل ورکول.

**دواوړو غونډ** :- (دَ+وا+ؤ+رو+—)-[اپ تر-اس-مذ-ج:ري] هغه غونډه شان ګوله چې د وربېدونکي واوړې نه په لاسونو جوړه کړے شي. (عموماً په دې باندې د تفریح دپاره یوبل ویشتے شي)

**غونډړبوزے** :- (غُ+نْ+ډ+رْ+بُو+زَے)-[اس-مذ-ج:زي] - بغوټے- مشهور مرض دے. ټنډغومبرے.

**غونډسکه** :- (غُ+نْ+ډ+س+كَ)-[اس-مذ-ج:کي] - پنډوس- بال.

**غونډسکے** :- (غُ+نْ+ډ+سْ+کَے)-[اس-مذ-ج:کي] - پنډوس- بال

**غونډک** :- (غُ+ؤ+نْ+ډَ+كْ)-[اس-مذ] - بوئے جولا- چې ډېر زهرناك وي. غونډل.

**غونډک** :- (غُ+نْ+ډَ+كْ)-[اس-مذ-ج:ان] - هغه ماشوم چې په ورېنې کښې ترلے شوے وي.

**غونډک** :- (غُ+نْ+ډ+كْ)-[اس-مذ-ج:ونه] - (۱) غونډه- ټولے- فرقه. (۲) فوځي اصطلاح- په افغانستان کښې د فوځیانو د یو خاص شمېر ډله.

**غونډک مشر** :- (—+م+شْ+ر)-[اپ تر-اس-ج:ان] - عسکري اصطلاح- په فوځ کښې د یوې ډلې چې «غونډك» نومېږي- افسر یا سردار

**غونډکۍ** :- (غُ+نْ+ډَ+ك+ی)-[اس-مو] - (۱) د سپنسونه جوړه شوې تنۍ- د مزي نه جوړه شوې ټنۍ. (۲) د غونډۍ تصغیر- د خاورو وغېره وړه شان ډېرۍ. (۳) د «غونډکے» تانیث.

**غونډل** :- (غُ+نْ+ډ+لْ)-[اس-مذ-ج:ان]د جولایو څنګلي قسم چې ډېر زهر ناك وي.

**غونډوسکے** :- (غُ+نْ+ډُو+س+کَے)-[و____ غونډسکے]

**غونډول** :- (غُ+نْ+ډَ+ؤ+لْ)-[مص] - (۱) غونډ شکل ورکول. (۲) ټولول جمع کول.

**ځان غونډول** :- (ژا+نْ+—)-(۱) ځان را ټولول. (۲) «را» سره ځان د څهٔ کار یا ذمه وارۍ نه بچ کول- ځان رانغاړل- ځان ژغورل.

**غونډه** :- (غُ+نْ+ډ)[صف-اس-مو]د مینې نه مندرۍ معشوقې ته هم وائي- غونډۍ.

پاؤ مې خوراك سېر مې دوراك شو
زړهٔ مې خشاك شو غونډه اور پرې بلوینه (ټپه)

**غونډۍ** :- (غُ+نْ+ډَ+ی)-(۱) وړوکے غر- غرګے. (۲) د خاورو وغېره ډېر لوے ډېرے، چې د وړوکي غر په شان وي. (۳) لوړه زمکه.

**په لوړه غونډۍ کښیناستل** :- (په اوچته ډبه کښیناستل- په اوچت ځاے کښیناستل چې ښکته څهٔ کېږي د هغې تماشه کولے شي. مجازاً: د چا د جنګ جګړې وغېره سره غرض نهٔ لرل او تماشه کول چې څهٔ نتیجه ئې خیژي.

**د زړهٔ غونډۍ خوربدل** :- (مجازاً: د زړهٔ سکون نهٔ پاتې کېدل- زړهٔ خوربدل.

**غونډۍ چر** :- (غُ+نْ+ډُ+ی+چَ+رْ)-[اپ تر-اس-مذ] - یو قسم کلك بوټے دے.

**غونډے** :- (غو+نْ+ډَ+ے)-[صف-مذ-مو-ی] - (۱) غونډ مونډ.

(۲) مندرے سړے چې غټ هم وي.

**غونډے** :- (غُ+نْ+ډَ+ے)-[اس-مذ-ج:ډي] - وړوکے غر- غونډۍ.

**غونډېدل** :- (غُ+نْ+ډي+د+لْ)-[مص] - (۱) ګول (غونډ) شکل اختیارول- ګول کېدل. (۲) ټولېدل- جمع کېدل. (۳) «را» سره را جمع کېدل یو ځاے کېدل.

**غونډېدونکے** :- (غو+نْ+ډي+دُو+نْ+کَے)-[صف-مذ-ج:کي]-[صف-مذ-ج:کي] - (۱) غونډ (ګول) شکل اختیاروونکے. (۲) جمع کېدونکے- ټولېدونکے. (۳) یوځاے کېدونکے. (۴) کونتې کېدونکے- ګونجې کېدونکے.

**غونزېدل** :- (غو+نْ+زي+د+لْ)-[و____ غونځېدل]

**غونګورے** :- (غُو+نْ+ګو+رَے)-[اس-مذ-ج:ري] - د غوږ لاندینۍ پسته برخه- د غوږ پستکے- نرمه.

**غونه** :- (غُو+نَ)-[اس-مو-ج:غونې] - (۱) رنګ- ګونه. (۲) چهره- څهره. (۳) رنګ د څرمنې.

**بده غونه** :- (بَ+دَ+—)- خراب رنګ- خرابه چهره.

**بده غونه څرګندول** :- (مجازاً: تندے تریو نیول. د ناخوښۍ اظهار کول.

**غونه** :- (غُو+نَ)- د بني ادم د بدن نري وېښتهٔ- پشم.(عموماً د جمعې په شکل کښې استعمالېږي)

**غونه زیږ کېدل** :- (د بدن وېښتهٔ نېغېدل- ډېره وېره اخستل- خوفزده کېدل. (عامه محاوره غوني زیږ زیږ کېدل)

**غونے** :- (غُو+نے)-[لاحقه] - لاحقه ده نورو الفاظو پسې راځي. او د په شان، په رنګ وغېره معنی ورکوي. لکه ژړاغونے- ژړه غونے. (اصلاً د ګون یا ګونه بدل شکل دے).

**اور غونے** :- (او+رْ+—)-[اپ تر-صف] - د اور په شان- اور ځېرے.

**بد غونے کېدل** :- (د مخ ګونه خرابېدل- تندے تریو نیول- بد رنګه کېدل. (غونے، د ګون یا ګونه بدل شکل دے).

**غنم غونے** :- (غَ+نْ+م+—)-[اس-فا-ج:نې] - هغه کس چې رنګ ئې د غنمو په شان وي- غنم رنګے.

**غونے** :- (غُو+نَے)-[اس-مذ-ج:نې] - عادت- خوي- خُلق.

**غونې** :- (غُو+نې)-[اس-ج] - د «غونه» جمع ده.

**غونېښے** :- (غُ+نې+خ/شَے)-[صف-ج:ښي] - خوش خویه- د ښو اخلاقو څښتن- خوش اخلاقه.

**غونړ** :- (غُو+نْ+ړ)-[اس-صوت] - هغه اواز چې د پوزې (په لاړ) راوزي خوړ.

**غوړاسکه** :- (غُو+نْ+ړا+س+كَ)-[اس-مو-ج:کي] - ټوپ- دانګه.

**غوړاسکې وهل** :- (ټوپونه وهل- دانګل را دانګل- جست و خېز کول.

**غوړاشکه** :- (غو+نْ+ړا+شْ+كَ)-[اس-مو-ج:کي] - هغه ساهه یا ساه اخستنه چې بل پرې نهٔ پوهېږي چې دې ساه اخلي او که نهٔ اخلي.

**غوړاشکي** :- (غُو+نْ+ړا+ش+کِي)-[ق-اس-مو] - (۱) ډېر کمزوري ساه اخېستنه- د مرګ د وخت تنفس.(۲) د اوبو په ډېره قلاره بهېدنه.

**غوړاشکي وهل** :- (داسې ساه اخېستل چې پته ئې نهٔ لګي. د بې کچه کمزورۍ علامت دے. مرګي حال (بودل).

**غوړکے** :- (غُو+نْ+ړ+کَے)-[و____ غوړ هار]

**غوړه** :- (غُ+نْ+ړَ)-[اس-صوت] - د څرخې د چورلېدو اواز.

**غوړه هار** :- (غُ+نْ+ړَ+ها+رْ)-[اس-صوت] - (۱) د پوزې (په لار وتے) اواز خوړ.(۲) د خوړ خوړ سرې خبرې. د هغې سرې د خبرو اواز څوك چې د

خبرې د نقص په وجه په پوزه کښې خبرې کوي.

**غوڼې** :- (غُو+نْ+ړے)-[اصف-مذ-ج:ړي-(مو: ړی]- خوڼ خوڼې- په پوزه کښې خبرې کوونکے. لکه: «په هغه سړي چې ډېر غوڼې وي ماته خندا راځي»

**غوڼې** :- (غُو+نْ+ړے)-[اس-مذ-ج: ړي]- د تندي يو کالے دے.

**غوڼې** :- (غُو+نْ+ړے)-[اس-مذ-ج:ړي]- حباب- بوړبوړکې.

غوڼې ووئيل اے ککه
کلك دې ووئيل بې حجابه (ارزاني)

**غوڼږے** :- (غُ+نْ+ړې+ږے)-[اس-مذ-ج:ږي] شپېلۍ يا بين کښې د غم غم اواز.

**غوؤل** :- (غو+ؤ+لْ)-[مص]- غېئيل- مجامعت کول- کوروالے کول.

**غوؤل کېدل** :- (غېئيلے کېدل- بد فعلي کېدل (چاسره)- بدکاري کېدل.

**غوولے** :- (غو+ؤ+لے)-[اس-مف-ج:لي]- (۱) هغه چې غولے شوے وي. چې بد فعلي ورسره شوې وي. (۲) شرمنده- شرمسار- سر ټيټے. (۳) بزدل- کم همته- بې غېرته- ذليل.

مه يك لخته مـــړنے شه مه غوولے
په دنيا کښې هره چار بنۀ ده وسطه (خوشحال)

**غوئے** :- (غ+وَ+ئے)-[اس-مذ-ج:آن]- (۱) د غوانړ- مشهور ځاورے. (۲) مجازاً: کم عقل- بېوقوف- ساده.

**غوئے پانړې** :- (غ+وے+پا+نْ+ړے)-[اس-مذ]- (۱) يو قسم بوټے دے چې پلنې پاڼې لري او د ځاروو خوراك دے. (۲) د ساګ په طور پخولے هم شي.

**غوېجل** :- (غ+وي+ج+لْ)-[و_____ غوجل]

**غوېجه** :- (غ+وي+جَ)-[و______غوېږه]

**غوېچه** :- (غ+وي+چَ)-[اس-مو-ج:چې]- ځنګلي خر- ګورخر- غېجه.

په صورت که هرڅو خورب بنائسته دے
دل ازار ظالــــم کـــــه تر ګنه له غوېچه (لواېړې)

**غوېډل** :- (غ+وَ+ې+ډَ+لْ)-[ق-اس-مو]- د غويانو جغ-ږغ- زمبر- جغے.

**غوېرګ** :- (غ+وَ+ې+رَ+ګْ)-[اس-مذ]- د شهوت رګ.

**غوېره** :- (غ+وي+رَ)-[اصف]- د غوره بدل شکل دے.

**غوېره** :- (غ+وي+رَ)-[اس-مو-ج:رې]- ګورخر- ځنګلي خر وغېره.

**غوېږي** :- (غ+وي+ږي)-[و_____ غوږي]

**غوېږه** :- (غ+وي+ږَ)-[اصف-مو]- نرم- لچکدار.

**غوېښکے** :- (غ+وي+خ/ ش+کے)-[اس-مذ-ج:کي]- د غنمو اوربشو پټے چې نوے را ټوکېدلے وي- سويه- مېسه- رمبکه.

**غوېلانړه** :- (غ+وَ+ې+لا+نْ)-[اس-مو-ج:ړې]- يو قسم بوټے دے چې اوږدې اوږدې خورې پاڼې لري- په سپرلي کښې ټوکېږي او ابي رنګ ګل کوي.

**غوېلنګ** :- (غ+وَي+لَ+نْ+ګ)-[اس-مذ]- دُم چې.

**غوېلے** :- (غ+وي+لَے)-[و______ غېلے]

**غوېمنــډ** :- (غ+وَي+مَ+نْ+ډ)-[اس-مـذ-ج:ونـه] (۱) د غويانو منـډې رامنډې (۲) مجازاً: د ګڼو کسانو (د غويانو په شان بې نظمه منډې رامنډې- افرا تفري- شور شرابه- د ګڼو کسانو مستي. (۳) د غويانو په ذريعه غوبل کونه.

**غوېمنډ جوړول** :- (۱) د غويانو په شان بې نظمه منډې ترړې وهل. د ګڼو کسانو منډې ترړې او مستي کول- غوبل جوړول. (۲) بد نظمي پيدا کول- افراتفري جوړول.

**غوېمه** :- (غ+وَي+مَ)-[اس-مو-ج:مې]- (۱) د غوا د نر طلب کول- نر سره جوړه کېدل غوښتل. (۲) شورشر- شور او مستي.

**غويمې** :- (غ+وي+مې)-(۱) د «غويمه» جمع ده. (۲) د «غويمه» اضافي او مجروري (متغير) شکل دے.

**غويه ګے** :- (غُ+ؤ+ي+ګے)-د «غويه» تصغير دے- غواګې.

**غـه** :- (غَ)-[اضـميرا- د (هغـه) مخفـف دے. (عمومـاً پـه شـعرونو کښـې استعمالېږي).

زۀ مرده يم، ستا د جام په ګوټ ژوندے شوم
چــې ئــې دا جـــرعه نوشلې غه په چا مري (خوشحال)

**غيـاب** :- (غ+يا+بْ)-[ع-اس-مذ]- غائب کېدنـه- عـدم موجـودګي. غېـر حاضري- غېر موجودګي.

**غيـابي** :- (غ+يا+بي)-[اس-مو]- غېب کېدنـه- غېب «بودنـه»- غېببدنـه- غېرحاضري.

**غيـاث** :- (غ+يا+ثْ)-[ع-اس-مو]- (۱) فريـاد- (۲) فريـاد رسـي- غـاؤ رسـي- فرياد اوربدونکے. (۳) مدد- امداد- مرسته.

**ال غياث** :- (اَ+لْ+—)-[ع تر-حرف]- د امداد د غوښتنې په وخت چغه ابستنه- فرياد کونه- غوښتنه.

**غېـب** :- (غَـ+بْ)-[ع-صـف-مـذ-مـو:ه]- (۱) د «حضـور» ضـد دے. غېـر حاضري- غېر موجودګي- د نظر نه پناهي. پوشيدګي- پټ حالت کښې. (۲) د راتلونکي وخت خبره- حال (چې هغه هم غېر موجود وي).

**غېب دان** :- (ــــ+دا+نْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان-(مو:ه]- هغه چې پټ څيزونه او حالات ورته معلوم وي- د غېبو علم لرونکے.

**غېب داني** :- (ــــ+دا+ني)-[عف تر-اس-مو]- د پټو پنهان خبرو يا کارونو علم لرنه- د غېبو علم لرنه.

**غېب عالم** :- (ــــ+عا+لَ+مْ)- په نظر نۀ راتلونکے مخلوق- پېريان- لکه: غېب عالم په دغې پېغلې ناست دي.

**غېب وئيل** :- (د غېب حالات بيانول.

**د غېب خبرې** :- (پټې خبرې- د هغه څيزونو يا حالاتو خبرې چې د نظر نه پناه وي.

**عالم غېب** :- (عا+لَ+م+ــــ)-[عف تر-اس-مذ]- د غېب دنيا- هغه دنيا کومه چې موجوده نۀ وي- يا په نظر نۀ راځي.

**علم غېب** :- (ع+لْ+م+ــــ)- د غېب علم- د راتلونکي وخت- يا د هغې معاملې وغېره په حقله علم کومه چې موجوده يا ښکاره نۀ وي.

**غېبانه** :- (غَـ+با+نَ)-[تف]- د غايبانه بدل شکل دے. لکه: په غېبانه وربانـدې مئين شوے يم.

**غېبـت** :- (غَـ+بَ+تْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- (۱) د (حضـور) ضـد دے. غېـر موجودګي- غېر حاضري- پناه کېدنه. (۲) پشي شا بد وئينه شمت کونه- څتمېري.

**غېبت کول** :- (پشي شاه بد وئيل د چا- پشي شا بد ګويي کول- شمت کول- څتمېري کول- په شا وئيل.

**غېبتي** :- (غَې+بَ+تي)-[عف تر-اس]- غېبت کونکے- پشي شا ويونکے- څتمېري کونکے.

**غېبه** :- (غَې+بَ)-[اس-مو]- وهلې شوې پنبه يا وړۍ- څۀ قدرې وړۍ يا مالوچ چې وهلې شوې وي.

**غېبي** :- (غې+بي)-[عف-تر-صف]- د «غېبت» سره متعلق يا غېب تـه منسوب- د نامعلومه ځاے نه. د غېبونه- له غېبه. اسماني- له اسمانه.

**غیبي امداد** :- هغه امداد کوم چي د داسي ځای نه را ورسي- د کوم چي هېڅ توقع نه وي. اسماني امداد- خدايي امداد.

**غیپ** :- (غي+پْ)-[اس-مذ-ج.ونه]- قيف (د تېلو وغيره) اچولو پيك.

**غیچ** :- (غي+چْ)-[اس-مذ]- د هلکانو د يوې لوبې نوم.

**غیچه** :- (غي+چَ)-[اس-مو-ج.چې]- (۱) کلك- محکم- شلبر. (۲) شخ ټوکی. (۳) د مېزري يو قسم. (۴) ځنګلي خر.

**غَیر** :- (غَي+رْ)-[ع-صف-مذ-مو.ه]- (۱) سېوا- علاوه- پرته له- بېجز. (۲) پردی- اجنبي- بېګانه. (۳) سابقه- د نفي په معنی کښې. (۴) غير د خدای نه- غير الله- باطل.

و معبود ته په سجده شۀ
لــه کل غيرو بريده شۀ (حافظ)

**غیر اباد** :- (ـــ+آ+با+دْ)-[عف تر-صف-مذ-مو.ه]- (۱) هغه زمکه چې اباده نه وي- يعنې فصل وغيره پکښې نۀ وي- يا کرکونده پکښې نۀ وي شوې- شاړه.(۲) کور- کلی وغيره چې څوك پکښې نۀ اوسي- وران- وېجاړ.

**غیر اختیاري** :- (ـــ+ا+خْ+ت+يا+ري)-[عف تر-صف]- هغه کار وغيره چې په (خپل) اختيار يا قابو کښې نۀ وي. مجبوري.

**غیر ازاد** :- (ـــ+آ+زا+دْ)-[اپ تر-صف]- هغه چې ازاد نۀ وي- محکوم- غلام- ماتحت- دبل د حکم يا اختيار د لاندې.

**غیر اطرافي** :- (عف-تر-صف-مو)- هغه چې طرفونه نۀ لري- بې غاړو.

**غیر تربیت یافته** :- (ـــ+تَ+رْ+بي+یَ+تْ+يا+فْ+تَ)-[عف تر-صف]- هغه چې تربيت ئې نۀ وي شوی- جټ- بې تهذيبه.

**غیر تسلي بخش** :-(ـــ+تَ+سَ+لْ+لي+بَ+خْ+ش)-[عف تر-صف-مذ-مو.ه]- هغه کار يا څيز چې د چا تسله يا اطمينان پرې ونۀ شي- خراب- نقص واله- ناقص.

**غیر جانبدار** :- (ـــ+جا+نِ+بْ+دا+رْ)-[عپ تر-صف-مذ-مو.ه]- هغه کس يا کسان چې د چا په پره جنبه کښې شامل نۀ وي.

**غیر جائز** :- (ـــ+جا+ئِ+زْ)-[عف تر-صف]- هغه کار يا څيز وغيره چې جائز نۀ وي- ناجائزه- ناروا.

**غیر جنس** :- (ـــ+جِ+نْ+س)-[عف-تر-اس]- چې د خپل جنس يا قسم نه نۀ وي. دبل يا د پردي نوع يا قسم- ناجنس.

**غیر چاره** :- [عپ تر-اس-مو-ج. غيرې چارې]- مجازاً- هغه کارونه چې شريعت سره سم نۀ وي- بد عملونه.

چې اجتناب له غيرو چارو نه په ژوند ونۀ کړي
سفر دې ګران دی د سفر په لار به پند ونۀ کړي (حافظ)

**غیر حاضر** :- (ـــ+حا+ضِ+رْ)-[عف تر-صف-مذ-مو.ه]- هغه چې حاضر يعنې موجود نۀ وي. غير موجود- غيب.

**غیر حاضري** :- (ـــ+حا+ضِ+ري)-[عف تر-اس-مو]- غير موجودګي. په موقع چې موجود نۀ وي.

**غیر حق** :- (ـــحَ+قْ)-[عف تر-صف]هغه کار وغيره چې حق نۀ وي. ناحق- دروغ.

**غیر حقیقي** :- (ـــ+حَ+قي+قي)-[عف تر-صف]- هغه څيز يا کار چې حقيقي نۀ وي- غير اصلي- نقلي- د دروغو.

**غیر دایمي** :- (ـــ+دا+يي+مي)-[عف تر-صف]- هغه کار يا څيز چې د همېش دپاره نۀ وي- د څۀ وخت دپاره. عارضي.

**غیر دیني** :- (ـــ+دي+ني)-[عف تر-صف]- هغه کار يا عمل وغيره چې دين سره تعلق نۀ لري- دنياوي.

**غیر ذمه دار** :- (ـــذِ+مَ+دا+رْ)-[عف تر-صف-مذ-مو.ه]-(۱) هغه چې څۀ کار ئې په ذمه نۀ وي- عام- معمولي(۲) هغه کس چې د خپلې رائې احساس ورته نۀ وي.

**غیر ذمه دارانه** :- (ـــ+ذِ+مَ+دا+را+نَ)-[عف تر-صف]- داسې کار يا عمل په کوم کښې چې د خپلې ذمه وارۍ يا فرض خيال نۀ وي ساتلی شوی.

**غیر ذي روح** :- (ـــ+ذي+رُو+حْ)-[عف تر-صف]- هغه څيز چې روح (ساه) نۀ لري- بې ساه يا بې ځانه (څيزونه).

**غیر رسمي** :- (ـــ+رَ+سْ+مي)-[عف تر-صف]- چې د رسم قاعدې مطابق نۀ وي- غير سرکاري.

**غیر رسمي خبرې اترې** :- (ـــ+رَ+سْ+مي+خَ+بْ+رې+اَ+تْ+رې)-[عف تر-صف]- هغه خبرې اترې چې ذاتي حېثيت لري- د حکومت يا د کومې ادارې د طرفه نۀ وي.

**غیر رسمي ملاقات** :- (ـــ+رَ+سْ+مي+مُ+لا+قا+تْ)-[عف تر-اس-مذ-ج.ونه]- هغه ملاقات يا ملاوېدنه کومه چې سرکاري طور سره يا د ادارې د طرفه نۀ وي.

**غیر زاد** :- (ـــ+زا+دْ)-[عف تر-صف-مذ-مو.ه]- د خپل پلار نه علاوه د غير سړي نه پېدا شوی- حرامي- حرام زاده.

**غیر زوجي** :- (ـــ+زَو+جي)-[عف تر-صف]- (۱) د خاوند ښځې د تعلق نه بغير. (۲) هغه څيز چې زوج (جوړه) نۀ لري.

**غیر سال** :- (ـــ+سا+لْ)-[عپ تر-صف]- (۱) نادرست- غير صحيح. (۲) بې وزنه- بې تولې.

بندو بست د پښتو شعر ما پيدا کړ
ګنې شعــر د پښتو ؤ غير ســال (خوشحال)

(۳) ناسياله- نابرابره- کم اصل.

**غیر سړی** :- (ـــ+سَ+ړَی)

**غیر شخص** :- (ـــ+شَ+خْ+ص)-[عف تر-اس-مذ]- پردی سړی- اجنبي- باهرنی سړی- غير متعلقه سړی. بېګانه.

**غیر شخصي** :- (ـــ+شَ+خْ+صي)-[عف تر-صف]- هغه خبرې اترې يا ملاقات وغيره کوم چې ذاتي نۀ وي- عام او ښکاره وي.

**غیر شرعي** :- (ـــ+شَ+رْ+عي)-[عف تر-صف]- هغه چې د شرعې سره تعلق نۀ لري- هغه کار وغيره چې د شرعې مطابق نۀ وي- د شرعې خلاف.

**غیر شعوري** :- (ـــ+شُ+عُو+ري)-[عف تر-صف]- هغه کار وغيره چې د پوهې مطابق نۀ وي يا چې په سوچ فکر نۀ وي شوی.

**غیر شفاف** :- (ـــ+شَ+فْ+فا+فْ)-[عف تر-صف-مذ-مو.ه]- (۱) هغه څيز چې شفاف نۀ وي- يعنې اورې پورې ترې نۀ شي ليدلی کېدی. (۲) تت. تاريك.

**غیر صریح** :- (ـــ+صَ+ري+حْ)-[عف تر-صف]- هغه خبره يا جواب وغيره چې واضحه نۀ وي.

**غیر ضروري** :- (ـــ+ضَ+رُو+ري)-[عف تر-صف]- هغه کار وغيره چې کول ئې ضروري نۀ وي- ناپکاره- د ضرورت نه باهر- فالتو.

**غیر طبیعي** :- (ـــ+طَ+بي+عي)-[عف تر-صف]- هغه کار وغيره کوم چې فطري نۀ وي. غير فطري. د قدرت د قانون نه خلاف.

**غیر عادي** :- (ـــ+عا+دي)-[عف-تر-صف]د عام عادت نه خلاف- د

معمول نه خلاف.

**غېر علاقائي** :- (هغه کار يا معامله وغېره چې کومې خاصې علاقې سره تعلق نۀ لري.

**غېر عمدي** :- (ــــــ+عَ+مْ+مَ+دِي)-[اعف تر-صف]- بې ارادې نه- بغېر د نيت نه- اتفاقي- خطا سره.

**غېر عملي** :- (ــــــ+عَ+مَ+لِي)-[اعف تر-صف]- هغه کار منصوبه وغېره چې په عمل کښې نۀ شي راوستې کېدے- چې عمل پرې نشي کېدے.

**غېر غماز** :- (ــــــ+غَ+مْ+ما+زْ)- پردے او بدخواه سړے- دښمن په پښتو شاعرۍ کښې عموماً د رقيب دپاره استعمالېږي.

**غېر فاني** :- (ــــــ+فا+نِي)-[اعف تر-صف]- نۀ فنا کېدونکے- چې تر ترتله باقي وي. د خداے پاک صفت دے- چې د هغه نه بغېر نور هر څۀ فاني دي.

**غېر قابل التحمل** :- (ــــــ+قا+بِ+لُ+تْ+تَ+حَ+مْ+مُ+لْ)-[اعف-صف] هغه خبره يا کار وغېره چې د زغم نه بهر وي- هغه کار وغېره چې د برداشت قابل نۀ وي.

**غېر قابل مقائسه** :- (ــــــ+قا+بِ+لِ+مُ+قا+ئِے+سَ)-[اعف تر-صف]- هغه کار يا څيز چې مقائسه ئې نۀ شي کېدے چې مقابله يا په خپله کښې قياس يا اندازه نۀ شي کېدے.

**غېر قانوني** :- (ــــــ+قا+نُو+نِي)-[اعف تر-صف]- هغه کار يا عمل کوم چې د قانون مطابق نۀ وي- د قانون نه خلاف.

**غېر قصدي** :- (ــــــ+قَ+صْ+دِي)-[اعف تر-صف]- بغېر د قصد نه- بغېر د ارادې يا نيت نه- غېر ارادي- په خطا سره.

**غېر ګټل** :- (غېر شمارل- پردے ګټل- خپل نه ګټل- بېګانه ګټل.

**غېر متجانس** :- (ــــــ+مُ+تَ+جا+نِ+سْ)-[اعف تر-صف]- چې هم جنس نۀ وي- چې د يو جنس يا نوع څخه نۀ وي.

**غېر متحد** :- (ــــــ+مُ+تْ+تَ+حِ+دْ)-[اعف تر-صف]- هغه (خلک) چې په خپله کښې اتحاد نۀ لري- بې اتفاقه- پرې کړي.

**غېر مترقبه** :- (ــــــ+مُ+تَ+رَ+قْ+بَ)-[اعف تر-صف]- هغه چې څۀ توقع ئې نۀ وي- د توقع او طمعې نه خلاف- چې طمع يا اميد ئې نۀ وي.

**غېر مترقي** :- (ــــــ+مُ+تَ+رَ+قْ+قِي)-[اعف تر-صف]- هغه چې ترقي نۀ کوي- يا د ترقۍ د کولو وړ نۀ وي- لوړېدونکے.

**غېر متزلزلانه** :- (ــــــ+مُ+تَ+زَ+لْ+زَ+لا+نَ)-[اعف تر-تف]- داسې حالت چې متزلزل نۀ وي- بغېر د څۀ تردُّده- په پخه او کلکه طريقه.

**غېر متساوي** :- (ــــــ+مُ+تَ+سا+وِي)-[اعف تر-صف]- چې (په خپله کښې) برابر نۀ وي- نابرابره.

**غېر متعهد** :- (ــــــ+مُ+تَ+عَ+هْ+هِ+دْ)-[اعف تر-صف]- هغه سړے يا ټولے چې چا سره ئې څۀ قسم لوظ نۀ وي شوے- يعنې چې هېڅ ذمه داري پرې نۀ وي.

**غېر متعين** :- (ــــــ+مُ+تَ+عَ+يْ+يَ+نْ)-[اعف تر-صف]- هغه کارونه چې مقرر يا معين نۀ وي.

**غېر متناهي** :- (ــــــ+مُ+تَ+نا+هِي)-[اعف تر-صف]- هغه چې هېڅ انتها يا اخر ئې نۀ وي.

**غېر مجاز** :- (ــــــ+مَ+جا+زْ)-[اعف تر-صف]- هغه چې مجاز نۀ لري. بې اختياره- بې صلاحيته.

**غېر محارب** :- (ــــــ+مُ+حا+رِ+بْ)-[اعف تر-صف-مذ-مو:ه]- نۀ جنګېدونکے- هغه سړے ټولے وغېره چې په جنګ کښې شامل نۀ وي.

**غېر محدود** :- (ــــــ+مَ+حْ+دُو+دْ)-[اعف تر-صف]- چې حد يا حدود نۀ لري- لامتناهي.

**غېر محرم** :- (ــــــ+مُ+حْ+رَ+مْ)-[اعف تر-صف]- هغه سړے چې يو زنانه ترې ستر کوي. يعنې چې د مخ د ښکاره کولو ورته شرعاً اجازت نۀ وي- پردے سړے.

**غېر مرتب** :- (ــــــ+مُ+رَ+تْ+تَ+بْ)-[اعف تر-صف]- هغه چې ترتيب ورله نۀ وي ورکړے شوے. بې ترتيبه- ګډوډ.

**غېر مزروعه** :- (ــــــ+مَ+زْ+رُو+عَ)-[اعف تر-صف]- هغه زمکه يا پټے چې کرونده پکښې نۀ کېږي- يا نۀ وي شوې- شاړه زمکه.

**غېر مساعد** :- (ــــــ+مُ+سا+عِ+دْ)- هغه چې مساعد نۀ وي- مرسته نۀ کوونکے- غېر مرستې- نامساعد.

**غېر مساوي** :- (ــــــ+مُ+سا+وِي)-[اعف تر-اس-صف]- چې مساوي نۀ وي- نابرابره- چې برابر (يو هومره يوشان وغېره) نۀ وي.

**غېر مستقيم** :- (ــــــ+مُ+سْ+تَ+قِي+مْ)-[اعف-صف-مذ-مو:ه]- هغه لار، طريقه وغېره چې نېغه نۀ وي. کوږ.

**غېر مستند** :- (ــــــ+مُ+سْ+تَ+نَ+دْ)-[اعف تر-صف]- هغه څيز چې سند نۀ شي ګرځولے کېدے- هغه ليک، کتاب، دستاويز وغېره چې اعتباري نۀ وي- بې اعتباره- غېر معتبر.

**غېر مسلح** :- (ــــــ+مُ+سَ+لْ+لَ+حْ)-[اعف تر-صف]- هغه چې وسله ورسره نۀ وي- تش لاس.

**غېر مشروط** :- (ــــــ+مَ+شْ+رُو+طْ)-[اعف تر-صف]- چې څۀ شرط ورسره نۀ وي تړلے شوے- بغېر د شرط يا شرطونو نه.

**غېر مصدق** :- (ــــــ+مُ+صَ+دْ+دَ+قْ)-[اعف تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه خبر وغېره چې تصديق ئې نۀ وي شوے- بې اعتباره- غېر يقيني.

**غېر مطلوب** :- (ــــــ+مَ+طْ+لُو+بْ)-[اعف تر-صف]- هغه چې طلب ئې نۀ وي شوے- هغه چې خواهش ئې نۀ وي شوے. ناغوښتے- ناپکاره.

**غېر معتبر** :- (ــــــ+مُ+عْ+تَ+بَ+رْ)-[اعف تر-صف]- هغه چې معتبر نۀ وي- چې اعتبار پرې نشي کېدے- بې اعتباره.

**غېر معقول** :- (ــــــ+مَ+عْ+قُو+لْ)-[اعف تر-صف]- هغه کار يا خبره وغېره چې د عقل سره سمه نۀ وي.

**غېر معمولي** :- (ــــــ+مَ+عْ+مُو+لِي)-[اعف تر-صف]- هغه څيز يا کار وغېره چې د عام عادت نه خلاف وي- د عام عمل نه خلاف- خاص.

**غېر معياري** :- (ــــــ+مِ+عْ+يا+رِي)-[اعف تر-صف]- هغه څيز چې د کوم خاص معيار مطابق نۀ وي- د کمې درجې.

**غېر معين** :- (ــــــ+مُ+عَ+يْ+يَ+نْ)-[اعف تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه چې معين شوے نۀ وي- غېر مقرر- هغه څيز وخت وغېره چې څۀ خاص حد ئې نۀ وي ټاکلے شوے.

**غېر مفيد** :- (ــــــ+مُ+فِي+دْ)-[اعف تر-صف]- هغه څيز يا کار وغېره چې څۀ فائده نۀ لري- غېر فائده مند.

**غېر مقبوضه** :- (ــــــ+مَ+قْ+بُو+ضَ)-[اعف تر-صف]- هغه کور، پټے پوله وغېره چې په قبضه کښې نۀ وي.

**غېر مقشر** :- (ــــــ+مُ+قَ+شْ+شَ+رْ)-[اعف تر-صف]- هغه څيز چې پوستکے ترې نۀ وي لرې شوے. (حکمت)

**غېر مکشوف** :- (ــــــ+مَ+كْ+شُو+فْ)-[اعف-تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه چې ښکاره شوے نۀ وي. پټ- پنهان.

**غېر مکفي** :- (ـــ+مَ+كْ+فِي)-[عف تر-صف]- هغه څيز وغېره چې کافي نهٔ وي- يا ضرورت نهٔ پوره کوي.

**غېر ملفوظ** :- (ـــ+مَ+لْ+فُو+ظْ)-[عف تر-صف]- هغه توري وغېره چې په ليك کښې خو راځي- خو په وېنا (تلفظ) کښې نهٔ راځي لکه: په ((خولهٔ)) يا ((خود)) کښې د (واو) توري.

**غېر ملکي** :- (ـــ+مُ+لْ+كِي)-[عف تر-صف]- (۱) د غېر ملك نه راغلې يا په غېر ملك کښې جوړ شوې- باهرانې.(۲) دبل ملك سړے يا څيز- اجنبي.

**غېر ممتاز** :- (ـــ+مُ+مْ+تا+زْ)-[عف تر-مف-مذ-مو:ه]- هغه چې د نورو نه څهٔ زيات ښکاره يا نمايان نهٔ وي. د عامې درجې.

**غېر ممکن** :- (ـــ+مُ+مْ+كِ+نْ)-[عف-تر-صف]- هغه کار يا منصوبه وغېره چې عمل پرې نهٔ شي کېدے- ناشُونے.

**غېر ممکن التردید** :- (ـــ+مُ+مْ+كِ+نُ+ت+تَ+رْ+دِي+دْ)-[ع تر-صف]- هغه خبره يا ليك وغېره د کومې چې ترديد نهٔ شي کېدے- پخه او حقه خبره وغېره.

**غېرممکن التقسیم** :- (ـــ+نُ+تْ+تَ+قْ+سِي+مْ)-[ع تر-صف]- هغه څيز کوم چې تقسيمېدے نهٔ شي.

**غېر منتظر** :- (ـــ+مُ+نْ+تَ+ظِ+رْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه چې انتظار ئې نهٔ کېږي يا نهٔ وي شوے- بې د څهٔ انتظاره- ناڅاپي. لکه: په ناڅاپي او غېر منتظر ډول.

**غېر منتظم** :- (ـــ+مُ+نْ+تَ+ظِ+مْ)-[عف تر-صف]- هغه څيز چې با قاعده نهٔ وي. (عموماً د جيو ميټري شکلونو په حقله وئيلے شي).

**غېر منجمد** :- (ـــ+مُ+نْ+جَ+مِ+دْ)-[عف تر-صف-مو:ه]هغه مائع څيز (لکه اوبهٔ) چې واوره شوې نهٔ وي يا واوره کېږي نا- نهٔ کنګل کېدونکے نهٔ واوره کېدونکے.

**غېر منطقي** :- (ـــ+مُ+نْ+طِ+قِي)-[عف تر-صف]- هغه کار خبره وغېره چې د منطق سره سمه نهٔ وي- غېر عقلي.

**غېر منظم** :- (ـــ+مُ+نَ+ظْ+ظَ+مْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه کار يا وګړے چې د څهٔ خاص نظام او ترتيب لاندې نهٔ وي- خور وور. لکه: غېر منظم تحريك يا لښکرې.

**غېر منقولي** :- (ـــ+مَ+نْ+قُو+لِي)-[عف تر-صف]- هغه جايداد وغېره چې د يو ځاے نه بل ځاے ته نهٔ شي وړلے کېدے. لکه: غېر منقول جايداد.

**غېر منقوله** :- (ـــ+مَ+نْ+قُو+لَ)-[عف تر-صف]- هغه څيز چې د يو ځاے نه بل ځاے ته حرکت نهٔ شي کولے- يا ئې څوك د يو ځاے نه بل ځاے ته نهٔ شي وړے. عموماً د جايداد په حقله وئيلے شي لکه پټي کور وغېره.

**غېر منکوحه** :- (ـــ+مَ+نْ+كُو+حَ)-[عف تر-صف]- هغه ښځه چې نکاح ئې نهٔ وي شوې- بې نکاح- ياره- اشنخه.

**غېر مؤثر** :- (ـــ+مُ+اَ+ثْ+ثَ+رْ)-[عف-تر-صف](۱) هغه چې اثر ئې نهٔ وي- بې اثره. (۲) هغه خبره وغېره چې اصل موضوع سره ئې تعلق نهٔ وي- د بحث نه بهر.

**غېر موروثي** :- (ـــ+مَو+رُو+ثِي)-[عف تر-صف]- هغه څيز کوم چې په وارثت کښې نهٔ وي ترلاسه شوے. (عموماً د جايداد په حقله وئيلے شي).

**غېر نظامي** :- (ـــ+نِ+ظا+مِي)- هغه چې نظم يا ترتيب نهٔ وي- بې ترتيبه- منتشر.

**غېر واجب** :- (ـــ+وا+جِ+بْ)-[عف تر-صف]- (۱) هغه عمل چې واجب يا فرض نهٔ وي- (۲) نامناسبه- چې مناسب نهٔ وي. (۳) (حساب) هغه کسر- د کوم نسبت نما چې د شمار کننده سره برابر وي. يا پرې تقسيم شوے وي.

**په غېر مستقیم ډول** :- (په کږه طريقه- په ناسمه طريقه.

**غېر** :- (غَے+رْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- ګوراخر- ځنګلي خر- غوېره.

**غېرت** :- (غَے+رَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- حيا- شرم- د بني ادم هغه خوي چې بې عزتي نهٔ شي زغملے- حميت- اشك- ننګ.

**غېرت په جوش کښې راتلل** :- (د غېرت جذبه راپورته کېدل.

**غېرت دار** :- (ـــ+دا+رْ)-[او______ غېرتناك]

**غېرت کول** :- (۱) د ننګ نه کار اخستل- شرم کول- (۲) په څهٔ کار کښې خپل پوره زور لګول. (۳) سيالي کول- اشك کول.

**غېرت ماه** :- (ـــ+ما+(ه))

**غېرت مشتري** :- (ـــ+مُ+شْ+تَ+رِي)

**غېرت مهر** :- (ـــ+م+ۀ+رْ)-[عف-تر-صف]- هغه ښکلے چې سپوږمۍ يا روښانه مشتري ستورے يا نمر هم رشك کوي. د معشوقې د صفت په طور وئيلے شي.

**غېرت من** :- (ـــ+مَ+نْ)

**غېرت مند** :- (ـــ+مَ+نْ+د)-[عف تر-صف-مذ-ج:ه]- غېرت واله- ننګ شرم لرونکے- ننګيالے- ننګيال.

**غېرت ناك** :- (ـــ+نا+كْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- غېرت واله- ننګ شرم لرونکے- ننګيالے- ننګيال- غېرتي.

**غېرتي** :- (غَے+رَ+تِي)-[ق-اس-مذ]- غېرت واله- غېرتمند- ننګيالے. ننګ شرم لرونکے.

**غېره** :- (غْ+ی+رَ)-[ق-اس-مذ]- ځنګلي خر.

**غېره** :- (غَے+رَ+هْ)-اصلاً (غَيْرَهْ) دے. د اخري ((ه)) حرکت ترې غورزېدلے دے. عموماً ((و)) سره يوځاے راځي يعنې وغېره- او بغېر د هغهٔ نه. او علاوه د هغهٔ نه. ځينې وخت وغېره وغېره. (دوه ځله هم راشي). پښتو کښې شمس العلماء (قاضي مير احمدشاه رضواني ددې ترجمه ((ددغه)) اختيار کړې ده.

**غېرے** :- (غَے+رَے)-[اس-مذ]- د پيازو په شان يو بوټے دے. چې خوړے شي.

**غېريت** :- (غَے+رِي-ی-تْ)-[اس-مذ]- غېروالے- پردي توب- اجنبيت او پروه والے- بېګانه توب.

**غېړه** :- (غَے+ړَ)-د ((غاړه)) بدل شکل دے.

**شنه غېړه** :- (ش+نَ+ـــ)-[اپ تر-اس-مذ]- د ماشومانو د يوې بيمارۍ نوم- پخولے- توره غاړه- (سياه صرفه)

**غېږ** :- (غې+ږْ)-[اس-مو-ج:ږې]- (۱) ترخ- بغل- کنار.(۲) دومره څيز (وابنهٔ وغېره) چې په يو لاس په ترخ کښې نيولے کېدے شي. (۳) کُشتي- پهلواني.

**غېږاغېږ** :- (ـــ+آ+غې+کَ/ ژْ)-[اپ تر-صف-مذ-مو:ه]- غېږ په غېږ- غاړه غړۍ- غاړه غټې.

**غېږ اېستونکے** :- (ـــ+اِي+سْ+تُو+نْ+کَے)[اپ تر-اس-فا-مذ-ج: کي]کُشتي کوونکے.

**غېږ په غېږ** :- (غاړه په غاړه- يوبل له غاړه ورکړي- تر غاړه وتے- هم کنار.

**غېږ په غېږ کېدل** :- (غاړه تر غاړه کېدل- تر غاړه وتل- بغلګير کېدل- هم کنار کېدل.

**غېږ ورکول** :- (ترخ اړمول- کوم کار ته ورلاندې وتل. په کشتي ورتلل- کُشتي تقسيم شوے وي.

کول.

**په غبر کښې اخيستل** :- (ماشوم په غبر کښې اوچتول. په زوے نيول- د بل ماشوم اخيستل چې د زوے په شان ئې وپالي.

**غبره** :- (غبِ+گ َ/ ڒَ- د ((غبر)) تانيث دے.

**غبشے** :- (غبِ+شَے)-[اس-مذ-ج:شي]- غشے- تير (د ليندۍ)

**غيظ** :- (غَے+ظْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- غصه- قهر- غضب- سخت.

**غيظ و غضب** :- (ـــ+(ظو)+غَ+ضَ+بْ)-[عف-تر-اس]ډېره غصه او قهر- قهر او سخت. دواړو لفظو تقريباً يوشان معنې دي. دوېم لفظ د تاکيد دپاره راغلے دے.

**په غيظ کښې راتلل** :- (په قهرېدل- په غصه کېدل.

**غئيل** :- (غَ+ئی+لْ)-[مص]- (۱) غوول- مجامعت کول- بد فعلي کول (چاسره)- بدکاري کول (چاسره)- (۲) خرابول- حبطه کول- ورانول (څۀ کار وغېره)

**غېل** :- (غَے+لْ)-[اس-مذ]- د کوم کار د صد مې نه خپل ځان په چل ټګۍ سره بچ کونه- يا يو طرف ته کېدنه- دوکه فرېب- چل- مکر

**غېل کول** :- (د کوم څيز د صدمې نه په څۀ چل فرېب خپل ځان ډډې ته کول- دوکه ورکول- مکرفرېب کول.

**غېل** :- (غبِ+لْ)-[اس-مو-ج:لې]- غوجل- غوېلے.

**غـېلان** :- (غـې+لا+نْ)-[اس-مـذ]- د تبلـو د ګـانۍ د تيـر پـه ډېـر کـار پـه وجـه سولېدل چې تېل په ښۀ طور سره نۀ شي ايستے.

**غيلے** :- (غَ+ئي+لَے)-[اس-مع-مذ-ج:لي)-(۱) غـوولے شـوے. هغـه چې چا سره بد فعلي شوي وي. (۲) کم همته- نامرد- بې کاره. په کار کښې سست. (د بدو ردو يا د کنځلو په طور وايه شي).

**غيلے** :- (غبِ+لے)

**غېلي** :- (غبِ+لي)-[اس-جم]- (۱) د ګډو، بزو رمه. (۲) د غـوا، مېښـو او ګـډو بـزو شريکه ګله. (۳) د هلکانو يوه لوبه- چې زمرے او ګډے هم ورتـه وائي.

**غېن** :- (غبِ+نْ)-[ع-اس-ج:ونه]- د مختلفو ژبو د يو غږ نوم- چې د ((غ)) په شکل کښې ليکلے شي. (تفصيل دپاره وـــــــ((غ)).

**غين** :- (غبِ+نْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- د غيڼ بدل شکل- د سړي اله تناسل- ذکر.

**غينجکه** :-(غِي+نْ+جَ+کَ)-[اس-مو-ج:کې]ترپکه- ټوپ- دانګه- (د غينجه تصغير)

**غينجه** :- (غِي+نْ+جَ)-[اس-مو-ج:جې]- (۱) ټوپ- دانګه- ترپکه. (۲) مستي- ترپکې.

**غينده** :- (غُ+ي+نْ+دَ)-[اس-فا-مذ]- غيونکے- چاسره بد فعلي کوونکے.

**غيندۍ** :- (غبِ+نْ+دَ+ی)-[اس-مو]- ترنګړ- غُوندے.

**غينډے** :- (غبِ+نْ+ډَے)-[اس-مذ-ج:ډي]- بټن- (ظفر)

**غيڼ** :- (غبِ+نْ+ڼْ)-[وــــ غيڼ]

**غيڼ** :- (غبِ+نْ+ڼْ)-[اس-مذ-ج:ونه]- (۱) د سړي اله تناسل- ذکر.

يـــا وه سړے هـــغـــه دے
چې ئې غيڼ نۀ دے په واك (خوشحال)

(۲) د څـۀ څيـز د ورکولـو نـه د انکـار پـه موقـع وئيـلے شـي.لکه: غـيڼ بـه درکړم(نۀ=درکۆم)

**غيڼ د پيخې نه راوښکل** :- (۱) د شهوت زور کول. (۲) چا پسې کېدل- د چانه په اصرار سره څۀ مطالبه کول.

**غيڼ منډل (بازاري)** :- (۱) غبئيل- بد فعلي کول. (۲) (پکښې سره) احتياج نۀ لرل- پروا نۀ کول- د اخستلو نه انکار کول.

**غيڼ نۀ اخلي / غيڼ به درکړم** :- (جملې)- جټ ګوار- نارينه- د انکار يا د کوم څيز نۀ ورکولو په موقع حقارتاً وائي.

**پـه غيڼ سـوريدل**:- (۱) ډېر کوني ((بـودل))- ډېر مست ((بـودل)) (۲) ډېر شـرارتي ((بودل)).

**په غيڼ کښېنول(بازاري)** :- 

**په غيڼ سوروّل** :- (د بدکارۍ دپاره يار کول- بد فعلي کول.

**په غيڼ کښې هډوکي لټول** :- (عوام)- عبث کارکول- بې فايدې کارکول- بې فايدې اعتراض کول- بې فايدې تپوسونه يا حجتونه کول.

**په غيڼ ګنه مړل(بازاري)** :- (نقصاني څيز سره چېړچاړ کول- په غيڼ کُنه مه مړه در کښې به لاړ شي. (متل)

**په غيڼ وهل (بازاري)** :- (۱) د کوم څيز نه په حقارت سره دست بردار کېدل- پرېښودل. لکه: نوکري ئې په غيڼ ووهله. (۲) پروانۀ کول هېڅ نۀ ګڼل. (عموماً د نفي په شکل کښې استعمالېږي).

**د چيرړو غيڼ** :- (بې کاره او سست پست سړے.

**د خـر غـيڼ** :- (دَ+خَ+رْ+ـــ)-[بازاري]- د چا د څۀ خبرې وغېره د ترديد دپاره وئيلے شي- هېڅ نه- هېڅ هم نه.

**د غيڼ په زور** :- (تش په خپل زور قوت.

**د غيڼ په سر کښېښودل چاته** :- (چاله څۀ څيز په ډېر سپکاوي ورکول.

**د کشتو غيڼ** :- (عارضي قوت او طاقت- هغه طاقت چې ډېره نۀ پاتې کېږي.

**غيڼکے** :- (غبِ+نْ+ڼَ+نْ+کَے)-[د غيڼ تصغير دے]

**غيڼـه ور** :- (غـبِ+نْ+ڼَ+وَ+رْ)-[اپ تـر-صـف]- لـوے غـيڼ لـرونکے- مجـازاً ډېـر شهوتي- زناکار- شهوت پرست.

**غيّور** :- (غَ+يْ+يُو+رْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- (۱) ډېر غېرتي. ډېر غېرت والـه. ډېر ننګيالے. (۲) د خدا ے پاك صفاتي نوم. (۳) څينو د غـرور پـه معنـیٰ کښې هم استعمال کړے دے- خو شاذ استعمال دے.

◈◈◈

# ف

**ف** :- (فې)-[اس-مو-ج:ګاني] د پښتو د الفبا د پرشم توری (حرف) دی. د عربی شلم، د فارسي درویشتم د اردو شپږویشتم توری دی. په سنسکرت کښې دا غږ نشته. په پښتو (عموماً په عوامي تلفظ کښې) دا غږ د ((پ)) په غږ بدلولی شي.

د ځينو دا خيال دی چې دا اصلاً د پښتو غږ نهٔ دی. او صرف د عربی/ فارسی نه په پور کړو الفاظو کښې استعمالېږي. او کوم خلک چې دغه الفاظ د ((ف)) په غږ سره ادا کوي- هغه ئې په تکلف سره ادا کوي يا د زيات جديد تعليم د وجې ورته ممکنه ده.

دا د عربی توری دی او په قرآن مجيد کښې ډېر استعمال شوی دی چې د قرآن پاک په کومو الفاظو کښې دا توری راغلی دی هلته په ((پ)) سره ادا کول جائز نهٔ دي- ځکه هر پښتون د ((ف)) تقريباً صحيح غږ ادا کولی شي. او ادا کوي. په ايراني، هندي ژبو (چې پښتو هم ورسره تعلق لري)، کښې هم د ف او پ بدلون عام دی.

په عربی فارسی او اردو کښې ورته ((فا)) وائي. د جمل له حسابه د دې توري قيمت د اتياؤ برابر دی. د ژبو قاعده ده چې ځينې وخت لفظونو سره د بلې ژبې نه غږونه هم پور کړے شي. په پښتو کښې د فارسی عربی داسې بې شمېره الفاظ موجود دي چې د ((ف)) غږ لري. دا اوس پښتو شوي دي. ځکه دا غږ هم د پښتو په الفبا کښې شامل دی. نهٔ خو دغه الفاظ د ژبې نه اوښکلی کېدے شي نهٔ په ټولو الفاظو کښې دغه ((ف)) په ((پ)) بدلولی شي. ځينو لغتونو کښې د ف پټې ده.

**ف** :- (فې)-[مخفف]- (۱) د ((فضيلت مآب)) مخفف دی چې يو لقب دی.(۲) د ((فايده)) مخفف. (۳) د فصلي (سن) مخفف. (۴) د عربی په الفاظو کښې د سابقې په طور استعمالېږي. او د ((پس)) ((بيا)) او د پښتو ((نو)) ((ترو)) معنی ورکوي.

**فا** :- (فا)-[اس-مو]- په عربی کښې د ((ف)) د توري نوم دی. شاذ و نادر د کوم لفظ د مخفف په طور استعمالېږي. لکه: ((فا)) د فم (خولهٔ) په معنٰی کښې.

په ګــرزونو ريزمريز تمام کوفته شي
نوش کوي زيرې اوبهٔ ګنده ئې فا وي (حافظ)

**فابريکه** :- (فا+ب+ري+کَ)-[انګ-اس-مو-ج:کې]- کارخانه- د رخت کپړې کارخانه- فېکټري.

**فـاتح** :- (فـا+ت+حْ)-[ع-اس-فـا-ج:ان]- پرانستونکی- لـرې کـوونکی. (۲) شـروع کـوونکی- شـورو کـوونکی- اغـاز کـوونکی. (۳) فـتح مونـدونکی- پـه کـوم ښـار يـا ملـک بـری مونـدونکی.(۴) غلبـه موندونکی- بری موندونکی- بريالی.

**فاتحانه** :- (فا+ت+حا+نَ)-[عف تر-ص]- د فاتح په طور- د بريالي په انداز- کاميابی سره.

**فاتحه** :- (فا+ت+حَ)-[ع-اس-مو-ج:حې]- (۱) د مړي د پاره دُعا غوښتنه.(پاته يا پاتا د دې بدل شکل دی) عموماً په دې دعا کښې سورة فاتحه لوستے شي. ځکه ئې دغه نوم وګرځېد. (۲) د قرآن پاک د اولنې سورت نوم چې الحمدُ هم ورته وائي (او نور ئې هم ډېر نومونه دي). (۳) شورو- اغاز- شروع- پېل.

**فاتحه خواني** :- (ـــ+خَ+وا+نې)-[عف تر-اس-مو]- فاتحه لوستل. د مړي د بخښنې د پاره دعا غوښتل.

**فاتحه کول** :- (د چا په مړکېدو د هغهٔ د بخښنې د پاره د خدای پاک نه دعا غوښتل- پاتا کول- لاس پورته کول. په مړي پسې د خوراک په څهٔ څيز دعا کول او خېرات کول.

**فاتحه لوستل** :- (۱) و- فاتحه کول- (۲) سورة فاتحه لوستل. الحمدُ لوستل.

**فاتر** :- (فا+ت+ر)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- کمزوری- سست- شړوت- مړاوی. (۲) تړم- نيم ګرم.

**فاتر العقل** :- (ـــ+رُ+لْ+عَ+قْ+ل)-[ع-صف]- بې عقله- چې عقل ئې په ځای نهٔ وي. لېونی- کم عقل.

**فـاجر** :- (فـا+ج+رْ)-[ع-صـف-اس-مـذ-ج:ان]- بـدکار- بـد چلـن- بـد چلنـده (سړی).

**فاجره** :- (فا+ج+رَ)-[ع-صف-مو-ج:رې]- بدکاره- بد چلنده (ښځه)

**فاجعه** :- (فا+ج+عَ)-[ع-اس-مو-ج-عې/ فجائع]- سخته پېښه- سخته واقعه- دردناکه واقعه.

**فاحش** :- (فا+حِ+ش)-[ع-صف-اس-ج-ان]- بې شرمه- سرمېدلی. د بې شرمي- قبيح.

**فاحشه** :- (فا+حِ+شَ)-[ع-اس-صف-مو-ج:شې]- بې شرمه- شرمېدلې د شرم د بې حيايی. (۲) درنه- سخته.

**فاحشه** :- (فا+حِ+شَ)-[اس-مو-ج:شې]- فشار په ش باندې)- بدکاره- بدلمنه- کاسيره- ډمه.

**فاخته** :- (فا+خْ+تَ)-[اس-مو-ج:تې]- ګوګوشتکه- ګوړګوړی- ګوګوړه- چې خړ رنګ لري- په مری کښې ئې طوق شان وي. د کوکو په شان اواز کوي- هر ځای وي- خو د کونترو په شان په کور کښې نهٔ عادتېږي. د امن او صلحې علامت ګڼلی شي.

**فـاخر** :- (فا+خ+رْ)-[ع-اس-فا-مذ-ج:ان]- (۱) فخر کوونکی- وياړ کوونکی- (۲) هغه څيز چې فخر پرې کولی شي. قيمتي- اعلی- نادر.

**فاخره** :- (فا+خ+رَ)-[ع-اس-فا-مو-ج:رې]- د ((فاخر)) تانيث دی.

**فاره** :- (فا+رَ)-[ع-اس-مذ]- منږک- مږه.

کبيره راته ګنده غوښې د خوک کړې
صـغـيره کـړې راتـه غـوښه د فاره (خوشحال)

اصلاً فار د فاره جمع ده.

**فارابي** :- (فا+را+بي)-[اس-مع]- یو مشهور مسلمان فلاسفر- نوم ئې حکیم ابونصر وۀ. د فاراب نومې ښار اوسېدونکے وۀ.

**فاران** :- (فا+را+نْ)-[اس-مع]- (۱) د یو غر نوم چې ذکر ئې په تورات کښې راغلے دے. د مسلمانانو په نزد هغه غونډۍ چې حجاز کښې ده (په تورات کښې هم د فاران ذکر راغلے دے. خو یهودیان او عیسایان وائي چې دغه ځاے د کنعان څخه دے).

**فارس** :- (فا+ر+س)-[اس-مع]- (۱) په ایران کښې د یوې علاقې نوم چې شیراز ئې دارالحکومت وۀ. (۲) د ایران ټول ملك.

**فارس** :- (فا+رِ+سْ)-[ع-اس-مذ]- د اس سور. د اس سورلي کوونکے.

**فارسټ** :- (فا+رِ+سْ+ټ)-[انګ-اس-ج:ونه]- ځنګل- د ونو ځنګل.

**فارسټ افیسر** :- (ـــــ+آ+فِي+سَ+رْ)-[انګ-تر-اس-مذ-ج:ان]- د ځنګلاتو د محکمې افسر- یا عهده دار

**فارسټ ډیپارټمنټ** :- (ـــــ+ډي+پا+ر+ټ+مِ+نْ+ټ)-[انګ-تر-اس-مذ-ج:ونه]- د ځنګلاتو محکمه- د ځنګلونو شعبه.

**فارسټ کالج** :- (ـــــ+کا+لِ+جْ)-[انګ-تر-اس-مذ-ج:ونه]- هغه کالج یا لویه درسګاه چېرته چې هغه علوم ښودلے او زده کولے شي کوم چې د (ونو) ځنګلونو سره تعلق لري.

**فارسټ ګارډ** :- (ـــــ+ګا+رْ+ډ)-[انګ-تر-اس-مذ]- د ځنګل څوکیدار.

**فارسټر** :- (فا+رِ+سْ+ټ+رْ)-[انګ-تر-اس-مذ-ج:ان-(مو):ه]- د ځنګلونو د محکمې یو ملازم.

**فارسي** :- (فا+رْ+سي)-[اس-مع]- هغه ژبه چې د فارس په صوبه کښې وئیلے کېده- بیا وروستو د ټول ایران ژبه شوه- پارسي- پاړسو.

**فارسي بان** :- (ـــــ+با+ن)-[ف تر-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو):ه]- فارسي ژبه ویونکے- هغه چې خپله ژبه ئې فارسي وي. فارسي وان.

**فارسي خوان** :- (ـــــ+خ+وا+نْ)-[ف تر-اس-مو-ج:ان]- فارسي ژبه ویونکے.

**فارسي دان** :- (ـــــ+دا+ن)-[ف تر-صف-اس-ج:ان- (مو):نَ]- په فارسۍ ژبه پوهېدونکے.

**فارسي وان** :- (ـــــ+وا+نْ)-[ف-تر-پ-اس-صف-ج:ان-(مو):ه]- فارسي ژبه ویونکے- هغه چې خپله ژبه ئې فارسي وي. فارسي بان.

**د ایراني فارسي** :- (د+اي+را+نِي+ـــــ)-[ف پ-تر-اس-مو]- د فارسۍ ژبې هغه ښانګه کومه چې د ایران په ملك کښې وئیلے کېږي. ایرانۍ فارسۍ د کابلۍ فارسۍ په مقابله کښې.

**د کابل فارسي** :- (دَ+کا+بِ+لْ+ـــــ)[ف پ-تر-اس-مو]- د فارسۍ ژبې هغه ښانګه کومه چې په کابل یا د افغانستان په ځینو سیمو کښې وئیلے کېږي. کابلۍ فارسي (د ایرانۍ فارسۍ په مقابل کښې).

**فارغ** :- (فا+رِ+غْ)-[ع-صف-مذ-ج:ان]- ازاد- اوزګار- چې کار ئې نۀ وي- خالي- بدي.

**فارغ البال** :- (ـــــ+(غُ+لْ)+با+ل)-[ع-تر-صف-مذ-مو:ه]- بې غمه- بې فکر- چې هېڅ فکر یا غم ورسره نۀ وي. د کاره وزګارشوے.

**فارغ البالي** :- (ـــــ+غُ+لْ+با+لِي)-[اس-مو]- (۱) فارغ کېدنه- بې فکره کېدنه. بې فکري- بې غمي- وزګارتیا. (۲) خوش حالي- اسودګي

**فارغ التحصیل** :- (ـــــ+رُ+غ+تْ)-تَ+حْ+صِي+لْ)-[ع-تر-صف-مذ-مو:ه] هغه چې د علم د حاصلولو نه وزګار شوے وي- یعنې د کومې ادارې علم ئې خلاص کړے وي- عالم تعلیم یافته.

**فارغ التحصیله** :- (ـــــ+(رِغُ+تْ)+تَ+حْ+صِي+لَ)- د فارغ التحصیل تانیث دے. جمع ئې فارغ التحصیلانې یا فارغ التحصیلات ده

**فارغ خطي** :- (ـــــ+خَ+طِي)-[عف-تر-اس-مو]- (۱) د فارغ کېدو خط یا رقعه- بې باقۍ رسید (۲) د ښځې خاوند ترمېنځه د بې تعلقۍ خط- طلاق نامه.

**فارغ کول** :- (وزګارول- ازادول- د کاره چُټي یا رخصت ورکول.

**فارغ کېدل** :- (وزګارېدل- کار نۀ پاتې کېدل. ازادېدل.

زړۀ دې پاك کاندي له شغله د مردارې
چې فارغ شي مصلې، تسبیح، مسواك ته (حافظ)

**فارغ لرل زړۀ** :- (زړۀ ازاد لرل- زړۀ پاك لرل.

**فارغول** :- (فا+رِ+غْ+ؤ+لْ)-[وـــــ فارغ کول]

**فارغېدل** :- (فا+رِ+غې+د+لْ)-[مص لا]- وـــــ فارغ کېدل.

**فارق** :- (فا+رِ+قْ)-[ع-اس-صف-مذ-مو:ه]- (۱) فرق کوونکے- تمیز کوونکے- بېلتون کوونکے. (۲) جدا کوونکے. بېلوونکے.

**فارقلیط** :- (فا+رْ+ق+لِي+طْ)-[عبر-اس-صف]- تسلي ورکونکے- په انجیل کښې راغلي دي چې حضرت عیسٰی علیه السلام نه پس به فارقلیط راځي- د مسلمانانو په نزد دغه فارقلیط حضور پاك صلی الله علیه وسلم دے خو عیسایان د دې نه منکر دي او بل کوم فارقلیط د راتلو انتظار کوي.

**فارقه** :- (فا+رِ+قَ)- د فارق تانیث دے.

**فارم** :- (فا+ر+مْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه]- هغه چاپ شوے کاغذ چې ځینې ځایونه پکښې خالي پرېښودے شوي وي- هر څوك د خپل ضرورت مطابق دغه خالي ځایونه ډکوي.

**فارم داخلول** :- (چاپ شوے فارم، د خالي ځایونو د ډکولو وروسته- خاص دفتر ته رسول.

**فارم ډکول** :- (په فارم کښې خالي ځایونه پُرکول.

**فارم** :- (فا+ر+م)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه]- د کرکروندې یا د باغونو وغېره د لګولو دپاره لویه وسیعه زمکه. چې د نوې طریقو تر لاندې په کښې د کرکروندې یا د باغونو وغېره لګولو کار کولے شي. (په انګرېزۍ کښې د دې تلفظ (فارْم) دے)

**پولټري فارم** :- (پو+لْ+ټ+ري+ـــــ)-[انګ تر-اس-مو-ج:ونه]- د چرګو چرګانو په لویه پېمانه د ساتلو ځاے.

**تعاوني فارم** :- (تَ+عا+وَ+ني+ـــــ)-[انګ-ف تر-اس-مو-ج:ونه]- امدادي فارم- چېرته چې د بوټو او مېوه دارو ونو لوئې لوئې ذخیرې وي او خلکو ته ترې د کرلو دپاره بوټي ورکولے شي.

**د حیوانات د روزنې فارم** :- (هغه فارم چېرته چې حیوانات غوا، مېښې وغېره ساتلے شي. ډېري فارم.

**د مرغانو د روزنې فارم** :- (پولټري فارم- د چرګانو د ساتنې ځاے.

**کولکتیف فارم** :- (کو+لَ+كْ+تِي+ف+ـــــ)-[انګ وتر-اس-مذ-ج:ونه]- په جمع جوړ شوے فارم- د ګڼو کسانو په زمکو جوړ شوے فارم

**فارما کوپیا** :- (فا+رْ+ما+کو+پ+یا)-[انګ-اس-مو]- د داروګانو د جوړولو کتاب- د دواسازۍ کتاب.

**فارماکولوجي** :- (فا+رْ+ما+کو+لو+جي)-[انګ-اس-مو]د دارو درملو په حقله علم.

**فارماکولوژي** :- (فا+ر+ما+کو+لو+ژي)-[او___ فارماکولوجي]

**فارمول** :- (فا+ر+مُو+ل)-[انګ-اس-مذ-ج:لې]- یوه مقرره قاعده یا حساب- قاعده- طریقه- اصل- لاره.

**فارمېسي** :- (فا+ر+مې+سي)-[انګ-اس-مو]- د داروګانو جوړونه. دواسازي.

**فارمېشن** :- (فا+ر+مې+شَ+نْ)-[انګ-اس-مذ]- شکل اختیارونه.

**دفارمېشن پرواز** :- (د هوائي جهازونو په خاص شکلونو کښې الوت کول.

**فارن** :- (فا+ر+نْ)-[انګ-اس]- بهرنے ملك- غېر ملك- بله بادشاهي.

**فارن افس** :- (___+آ+ف+سْ)-[انګ-تر-اس-ج:ونه]- هغه دفتر چې پکښې غېرو ملکونو سره معاملات کولے شي.

**فارنر** :- (فا+ري+نَ+رْ)-[انګ-تر-صف-مو:ه]- د بهرني ملك اوسېدونکے- د بل ملك یا حکومت اوسېدونکے- غېر ملکي.

**فارن هائیټ** :- (فا+ر+ن+ها+ئ+ټ)-[اس-مع-مذ]-(۱۶۸۶-۱۷۳۶ء) یو جرمن سائینسدان چا چې د حرارت د معلومولو دپاره یو ترمامیټر ایجاد کړے دے. دغه ترمامیټر د دۀ په نوم فارن هائیټ ترمامیټر یادېږي. پوره نوم ګیریل ډېنیل فارن هائیټ.

**فاروړ** :- (فا+ر+و+رُ+ډ)-[انګ-صف]- وړاندې- پرمخ تلنه.

**فاروړ پالیسي** :- (د وړاندې تللو پالیسي- تېز پرکه پالیسي.

**فاروق** :- (فا+رُو+قْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- (۱) فرق کوونکے- بېلتون کوونکے. (۲) په حق او باطل کښې فرق کوونکے د حضرت عمرؓ لقب دے چې حضور پاك صلی الله علیه وسلم ورله ورکړے وۀ. (د شیعه ګانو په نزد دا د حضرت علي رضی الله عنه لقب دے).

د فرقان په هدایت فاروق پوهېږي
نه بـــوجهل بولهب ته هدایت کا (خوشحال)

**فاروق اعظم** :- (___+اَ+عْ+ظَ+مْ)-[د حضرت عمرؓ لقب دے.

**فاروقي** :- (فا+رُو+قِي)-[اس-مع]- هغه کسان چې د حضرت عمرؓ له اولاد څخه دي. ځان سره په دغه نسبت فاروقي لیکي.

**فاره** :- (فا+رَ)-[ع-اس-مو]- مږه- منږك.

چې وهل غوړل خورول کا هغه باز دے یا شاهین دے
چـــې ســـوري لره ئې ورینه یا مېږے دے یا فاره! (خوشحال)

**فاریاب** :- (فا+رُ+یا+بْ)-[اس-مع]- په خراسان کښې د بلخ په خوا کښې د یو ښار نوم دے، د مشهور شاعر ظهیر فاریابي وطن دے.

**فاس** :- (فا+سْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- تبر.

**فاسخ** :- (فا+سِ+خْ)-[ع-اس-مذ-ح:ان]- فسخ کوونکے. اراده یا بیع ماتوونکے.

**فاسد** :- (فا+س+دْ)-[ع-اس-صف-ج:ان-(مو):ه]- (۱) فساد کوونکے. فساد پیدا کوونکے. (۲) هغه څیز چې فساد پکښې پیدا شوے وي. خراب شوے- ګنده- لکه فاسده غوښه. (۳) خراب. لکه فاسد خیالات

**فاسد کېدل** :- (خرابېدل- سخاکېدل- خوسا کېدل)

**فاسدېدل** :- (فا+س+دې+د+لْ)-[مص]- فاسد کېدل- خرابېدل- خرابے پیدا کېدل (په څۀ کښې) کله: فاسده شوې هوا.

**فاسفورس** :- (فا+سْ+فُو+ر+سْ)-[انګ-اس-جم]- یو قسم سلېښناکه ماده ده، چې په نمجنه هوا کښې تري نه تته شان رڼا راوځي. دا په فاسفېټ خاوره او په هډوکو کښې وي.

**فاسفېټ** :- (فا+سْ+فې+ټ)-[انګ-اس-جم]- یو قسم کېمیاوي ماده ده چې د

سرې په طور استعمالولے شي.

**فاسق** :- (فا+س+قْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو):ه]- فسق کوونکے د حد نه اوړېدونکے- بدکار- زناکار- ګناهګار.

شعر کار د هر فاسق د فاجر نۀ دے
نۀ د هـــر یوۀ وړ سترګې د کنګال (خوشحال)

**فاسل** :- (فا+س+لْ)

**فاصل** :- (فا+ص+لْ)-[انګ-اس-مذ]- د پخوانو زمانو هغه حیوانات یا نباتات چې وجود ئې په ځینو کاڼو یا نورو مادو کښې ښخ پاتې شوي وي او تر اوسه صحیح او محفوظ وي. فوسل.

**فاش** :- (فا+شْ)-[ف-صف-مذ-مو:فاشه]- ظاهر- ښکاره- څرګنده.

**فاش شکست** :- ( ___ +ش+ك+سْ+ت)-[ف تر-اس-مذ-ج:ونه]- څرګنده. ماتې- ښکاره شکست.

**فاش غلطي** :- (___ +غ+ل+طِي)- ښکاره غلطي- څرګنده غلطي.

**فاش کول** :- (تر مص)- څرګندول- ښکاره کول- راز یا پټه خبره ښکاره کول.

د منصور و حال ته ګوره حـــال ئې څۀ شۀ
خداے دې فاش د هېچا نۀ کاندي پټ راز (رحمان بابا)

**فاش کېدل** :- (ښکاره کېدل- څرګندېدل- پټ نۀ پاتې کېدل (راز وغېره)

**فاشـزم** :- (فـا+ش+زْ+مْ)-[انـګ-اس-مـذ]- یـو تحریـك چـې د سوشـلزم او د کمیونزم خلاف په وجود کښې راغلے وۀ.

**فاشیستي** :- (فا+ش+سْ+تي)-[فاشزم]- د حکومت هغه ډول کوم چې ۱۹۲۲ء کښې د سوشلزم او کمیونزم په مقابله کښې جوړ شوے وۀ.

**فاشسټ** :- (فا+ش+سْ+ټ)-[اس-صف]- فاشسټ- فاشست- د سوشلزم او کمیونزم خلاف جوړې شوې ډلې.

**فاصل** :- (فا+ص+لْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- فصل پیدا کوونکے- جدا کوونکے- بېلونکے.

**فاصلوي** :- (فا+ص+ل+وي)-[عف تر-صف]- جدا والي سره تعلق لرونکے. لکه: فاصلوي نخښنه.

**فاصله** :- (فا+ص+لَ)-[ع-اسم-مو-ج:فاصلې]- لرې والے- مسافت. د دوو څیزونو (ښهرونو وغېره) د لرې والي مقدار.

**فاصلې** :- (فا+ص+لې)-(۱) د «فاصله» جمع. (۲) د فاصله اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل دے.

**فاضل** :- (فا+ض+لْ)-[ع-اس-ف-ج:ان-(مو):ه]- (۱) زیات- زیاتي- افزون- د حساب یا د ضرورت نه زیات. باقي مانده. (۲) فضیلت لرونکے- عالم.

وائي تۀ به د مجنون غوندې مئین وے
که و چارو ته مې ګورې ترې فاضل یم (خوشحال)

**فاضل اجل** :- (___ +اَ+جَ+لْ)-[عف تر-صف]- ډېر لوے فاضل یا عالم.

**فاضلات** :- (فا+ض_لا+تْ)-[اس-ج]- هغه پیسې تکې کومې چې زیاتې شوې یا بچ شوې وي.

**فاطر** :- (فا+ط+رْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) پیدا کوونکے- خالق- (۲) په قران شریف کښې د یو سورة نوم.

**فاطمه** :- (فا+ط+مَ)-[اس-مع]- (۱) د حضور پاك صلی الله علیه وسلم د لور بـي بـي نـوم پـه ۶۰۵ء کښـې پیـدا او پـه ۶۳۲ء کښـې وفـات شـوې ده. حضرت علي کرام الله وجهه تـه وادۀ شـوې وه. امام حسـن او امـام حسـین رضـي الله عنهمـا د دوي زامـن وو. د ښائسـت پـه وجـه «الزهرا» ئې لقب وۀ. (۲) د مسلمانانو زنانوؤ په نوم کښې ډېر استعمالېږي.

**فاطمي** :- (فا+ط+مي)-[اس-مع]- د حضرت فاطمې بي بي د اولاد وګړي ځان سره د دې په نسبت فاطمي ليکي. مصر کښې د حکمرانانو يو خاندان فاطميه بللے شۀ.

**فاعل** :- (فا+ع+لْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو:ة]-(۱) کارکوونکے.

يو ښکاره د قيـــــامت عـــــلامت داد ے

په فاعل باندې چې اوس تېر ے مفعول کا (خوشحال)

(۲) غـلام (بچه بـازي) کـوونکے. (۳) پـه جملـه کښـې هغـه اسم چې چا څۀ کار کړے وي او په چا چې څۀ کار شوے وي هغه ته مفعول وائي. لکه زيد خط وليکۀ. په دې جمله کښې د خط د ليکلو کار کوونکے زيد فاعل دے. ((وليکۀ)) فعل دے. او ((خط)) مفعول دے.

**فاعل حقيقي** :- (ـــ +حَ+قِي+قِي)-[اس-مع]- خدا ے تعالیٰ.

**فاعل ومفعول** :- (ـــ +(او) مَ+فْ+عُو+لْ)-[اعف تر-اس]- (۱) دوه کسان يو هغه چې څۀ کار ئې کړے وي. دوېم هغه چې په چا باندې کار شوے وي. (۳) اغلام کوونکے- او چا سره چې اغلام وکړے شي.

**فاق** :- (فا+ق)-[ت-اس-مذ]- سوفار- د غشي تېرۀ سر.

**فاقد** :- (فا-ق+دْ)-[ع-صف-مذ-مو:ة]- ورکوونکے- ګم کوونکے.

**فاقه** :- (فا+قَ)-[ع-مو-ج:قې]- نهره تېرونه- بې د خوړلو څښلو پاتې کېدنه- نَهَره.

**فاقه کش** :- (ـــ+ك+شْ)-[اف تر-صف-س-مذ-ج:ان-(مو:ة]- فاقـه کـوونکے- نهري تېروونکے- پرله پسې خوراك څښاك نۀ کوونکے.

**فاقه کشي** :- (ـــ+كَ+شي)- پرله پسې فـاقې کونه- خوراك څښـکاك نۀ کونه- (عموماً د تنګدستئ او د نېستئ د اظهار دپاره وئيلے شي).

**فاقه کول** :- (خوراك څښکاك نۀ کول. اوږے پاتې کېدل.

**فاقــه مســـت** :- (ــــ+م+سْ+ت)-[اف تـر-صـف-س-مـذ-ج:ان-(مـو:ة]- (۱) هغه کس چې سره د فـاقو (نهرو تېرولو) هم مستي کوي او پروا نۀ کوي. (۲) هغه سړے چې سره د غريبئ او تنګ دستئ د مستئ کارونه کوي.

**فاقې** :- (فا+قې)-(۱) د ((فاقه)) جمع. (۲) د ((فاقـه)) اضافي او مجروري وغېره متغير شکل.

**فاقې تېرول / فـاقې کـول** :- (ورځې شـپې پـه نهره تېرول. ورځې شـپې بې خوراکـه، څښـاکه تېـرول. د ډېـرې غريبـئ او نـادارئ پـه وجـه بې خوراکه څښاکه پاتې کېدل.

**فاکولټـه** :- (فـا+کو+لْ+ټَ)-[اف-اس-مـو-ج:ټې]- فېکلټـي- پـه کـوم کـالج يـا يونيورسټئ کښې د کوم خاص علم شعبه يا څانګه. پوهنتون

**د ادبيـاتو فاکولټـه** :- (پـه کـوم پوهنتـون کښـې د ادبيـاتو شـعبه يـا څانګـه. فېکلټي اف ارټس.

**فاکهه** :- (فا+ك+هَ)-[ع-اس-مو-ج:هې]- مېوه.

**فـال** :- (فـا+لْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- شـګون- د قسـمت وغېـره پـه حقلـه پـه مختلفو طريقو حال معلومونه. پال.

**فال بين** :- (ـــ+بي+نْ)- فالي- پالي- و______فالګر.

**فال کتل** :- (د خپل قسمت يا د راتلونکي وخت په حقله حال معلومول. د دې مختلفې طريقې رائجې دي. څوك قرآن پاك کښې په مختلفو طريقو فال ګوري. څوك د ځينو خاصو شاعرانو په ديوانونو کښې ګوري.....)

فال به څۀ ګورې رحمـــانه

خپل عمل د سرې فال شي (رحمان بابا)

**فال ګر** :- (ـــګ+رْ)-[اف-پ-تر-اس-ج:ان]- هغه کس چې فالونه ګوري. فالي- پالي.

**فال ګره** :- (ـــ+ګ+رَ)-[اف-پ-تر-اس-مو-ج:رې]- د فالګر تانيث دے.

**فـال نامه** :- (ـــ+نا+مَ)-[اف-تر-اس-مو-ج:ې]- هغه کتاب چې پکښې په مختلفو طريقو د قسمت حال يا د اينده واقعاتو وغېره حال معلومولے شي.

**فال نيول** :- (څۀ خبره په فال يا شګون نيول. چې کۀ داسې وشي نو به ښۀ فال وي او کۀ داسې وشي نو به بد فال وي.

**فال وښکل** :- (و____ فال کتل)

د مجاز په معشوقه کښې وفا نشته

ما هـــــزار ځله وښکلے دے دا فال (رحمان بابا)

**فالتو** :- (فا+لْ+تُو)-[اُر-صف]- (۱) تېرے- د ضرورت يا د حساب نه زيات- (۲) ناپکاره- بې کاره.

**فالج** :- (فا+لْ+جْ)-[اس-مذ]- د يو مرض نوم- چې پکښې (عموماً) نيم بدن- بېخي بېکاره شي.

**فالج زده** :- (و______ فالج وهلے).

**فالج وهل** :- (د بدن په کومه برخه د فالج د مرض حمله کېدل- د بدن څۀ برخه د دغې مرض له کبله بېکاره کېدل.

**فالج وهلے** :- (ـــ+وَ+هَ+لَے)-[اعف-تر-اس-مف-مذ-ج:لي]- هغه کس يا د بدن څۀ برخه چې د فالج د مرض اثر پرې شوے وي. د فالج په وجه بېکاره شوے.

**فالسه** :- (فا+لْ+سَ)-[اف-اس-مو-ج:فالسې]- د هندوستان يو وړه شان مېوه- چې د ګورګرو هومره وي. خوږے هم شي. او شربت هم ترې جوړولے شي.

**فالوده** :- (فا+لُو+دَ)-[اف-اس-مو-ج:دې]- د خوراك مشهور څيز پالوده چې د ناشتې (نشائسته) خوږو- واؤړې، پَيو (شودو) وغېره نه جوړولے شي او ناشسته پخه کړے شي بيا ترې په چاڼ کښې باتئ شان جوړې کړے شي او بيا دا نور څيزونه پکښې ګډ کړے شي.

**فالونه** :- (فا+لُو+نَ)- د ((فال)) جمع ده.

**فالي** :- (فا+لي)-[اف-اس-مذ]- هغه سړے چې فالونه اوباسي.

**فام** :- (فا+مْ)-[اف-لاحقه ده]- لاحقه ده. د نورو الفاظو سره راځي. او د رنګ او ((په شان)) يا ((په څېر)) معنیٰ ورکوي.

**سفېد فام** :- (ـــ+سَ+فې+دْ)-[اف-تر-صف-مذ-مو:ة]- سپين رنګ واله.

**سيه فام** :- (س+یَ+هْ+ـــ)-[اف-تر-صف-مذ-مو:ة]- تور رنګے- سکڼ.

**ګل فام** :- (ګُ+لْ+ـــ)-[اف-تر-صف-مذ-مو:ة]- د ګل په شان يا د ګل په شان رنګ لرونکے. ښکلے- ښائسته.

**فانوس** :- (فا+نُو+س)-[اف-مذ-ج:ونه]- (۱) يو قسم شمع دان- چې شيشه ترې چاپېره وي.

رحمٰن حسن ديار ويني په پرده کښې

نه پټېږي نـــــور د شعمې په فانوس (رحمان بابا)

(۲) يوقسم لوګے شمع دان- چې ګنې شمعې پکښې کېښودے شي اوچت زوړندولے شي. (اوس پکښې د بجلئ بلبونه بلولے شي.(۳) د کاغذ وغېره نه جوړه شوې وړه ډولئ چې پکښې شمع يا وړوکے مشغل بلولے شي، چې څۀ وخت دا ډولئ د لوګي نه ډکه شي- نو د لوګي د سپکوالي له کبله پورته په هوا کښې الوځي. (۴) په سمندر کښې هغه مينار- د کوم په سر کښې چې د رڼا انتظام شوے وي. د

دي رڼا په وجه جهازونه د سمندري چټانونو نه په ډډه ځي. د رڼا مينار (انګ: الائت هاؤس)

**فانه** :- (فا+نَ)-[ف-اس-مو-ج:نې]- پانه- شپشتے.

**فاني** :- (فا+ني)-(۱) فنا کېدونکے- اخر مړکېدونکے يا ختمېدونکے.

نور خلک فاني دي که باقي دے هم هغه دے
هر چې په فاني دنيا يادېږي وروستو وړاندې (خوشحال)

**فاني دنيا** :- (ــــ+دُ+نْ+يا)-[غپ-تر-اس-مو]- دا جهان چې اخر به فنا او ختم شي. تل نۀ پاتې کېدونکے جهان.

**فانيز** :- (فا+ني+زْ)-[ف-اس-مذ]- (۱) يو قسم متيايي. (۲) خواږۀ- نبات. ((فانيد)) هم وائي.

پسند به ئې ذوالفن کا د حافظ وئيل فانياز دي
خوند لذت ئې ډېر دے ورکوي مزه ذوقين ته (حافظ)

**فاؤل** :- (فا+ؤَ+لْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه]- په لوبه کښې ټکي- په لوبه کښې بې قاعدګي.

**فاؤل کول** :- (په لوبه کښې د لوبې د قاعدو خلاف عمل کول.

**فاؤل کېدل** :- (په لوبه کښې د لوبې د قوانينو خلاف عمل سرزد کېدل

**فاؤنډري** :- (فا+ؤ+نْ+ډ+ري)-[انګ-اس-مو]- هغه ځاے- چېرته چې د ويلې شوي فلزاتو (داتونو) نه په قالبونو کښې مختلف قسم څيزونه جوړولے شي.

**فاهيان** :- (فا+هي+يا+ن)-[اس-مع]- (۴۰۴ء) د چين مشهور سېلانے او بدهـ مذهب يو راهب چې په ۴۰۱ء کښې هند ته راغلے وۀ. دلته ئې لس کاله تېر کړي وو. او د دې ملك او خلكو حالات ئې ليكلي وو. ددۀ ليكونه زمونږ د تاريخ يو لوے ماخذ دے.

**فايده** :- (فا+ئـ+دَ)-[ع-اس-مو-ج:دې]- (۱) ګټه- نفع- امدن. په لاس راتلنه. (۲) نوټ- حاشيه. (۳) ښېګړه- بهتري. (۴) سود.

**فايده اخستل** :-

**فايده اوچتول** :- (ګټه اخستل- نفع اخستل. نفع لاس ته کول. نفع حاصلول.

**فايده من** :- (ــــ+م+نْ

**فايده مند** :- (ــــ+مَ+نْ+د)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه]- فايده رسوونکے- مفيد- کارګر- ښېګړي واله.

**فايده ناک** :- (ــــ+نا+كْ)-[و____ فايده مند]

**فاير** :- (فا+يے+رْ)-[انګ-اس]- اور- هور- (ف)-اتش.

**فاير برګېډ** :- (ــــ+بَ+رْ+ګې+ډ)- د ښهرئي هغه محکمه چې په ښهر کښې چېرته اور ولګي- نو زر تر زره خپلو موټرو مشينونو سره د اور مړ کولو دپاره موقع ته ځي.

**فاير پروف** :- (ــــ+پ+رُو+پْ)-[انګ-تر-صف]- هغه جامه يا کپړه چې د اور نه محفوظه وي- يعنې اور نۀ اخلي.

**فاير مېن** :- (ــــ+مې+نْ)-[انګ-تر-اس-مذ-ج:ان]- (۱) د اور سړے. د رېل ګاډي د انجن هغه ملازم چې د انجن اور بل ساتي. (۲) هغه سړے چې د اور په مړ کولو مقرر وي. د فاير بريګېډ ملازم.

**فايق** :- (فا+يے+قْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- فوقيت لرونکے- غوره- اعلى. د ټولو نه ښه.

په ادب اداب به نۀ فايق تر چا شي
چې له ځايه په فطرت نۀ دي فايق (خوشحال)

**فاين** :- (فا+يي+نْ)-[انګ-صف]- ښۀ- ښکلے- نفيس.

**فاين ارټ** :- (ــــ+ا+ر+ټ)-[انګ-تر-اس-مذ]- نفيس هنر- لکه موسيقي- مصوري- شاعري وغېره.

**فبها** :- (فَ+بِ+هَا)-[جمله]- ښه ده! ښه! لکه: کۀ هغه راغے ((فبها)) ګنې نو مونږ به ورله ورشو.

**فتا** :- (فَ+تا)-[ع-اس]- (۱) ځوان سړے- زلمے- شاه زلمے.

لکه هسې رنګه کار دے
راشــــه واؤره اے فتا (خوشحال)

(۲) تکړه- زړۀ ور سړے.

**فتان** :- (ف+تْ+تا+نْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- فتنه انګېز- فتنه پېدا کوونکے- اثري- مفتون کوونکے- زړۀ راښکونکے- (عموماً د معشوقې د سترګو په حقله وئيلے شي)

**فتاوىٰ** :- (فَ+تا+وا)-[ع-اس-ج]- د فتوىٰ جمع ده. فتوې.

**فتح** :- (ف+تْ+حَ)-[ع-اس-مو-ج:ې-فتوح- فتوحات](۱) برے- ګټه. (۲) د نارينه ؤ په نومونو کښې راځي. (په دې صورت کښې ئې تلفظ بدل شي. (ا) که د عربي په مرکباتو کښې وي نو ف+ت+حُ تلفظ کېږي. لکه فتحُ الرحمٰن. (ب) که چرې ځان له وي يا د پښتو مرکباتو کښې وي نو بيا (ف+ت+حْ) تلفظ کېږي لکه فتح (ف+تِ) يا فتح محمد غېره.

**فتح من** :- (ــــ+م+نْ

**فتح مند** :- (ــــ+مَ+نْ+د)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- برے موندونکے بريالے- فاتح- کامياب- ګمندويه- ګټور.

**فتح نامه** :- (ــــ+نا+مَ- هغه نظم يا کتاب چې په کښې د کوم قوم يا د لښکر د فتحې صفت شوے وي.

**فتح نصيب کېدل** :-

**فتح روزي کېدل** :- فتح موندل- برے موندل- بريالے کېدل.

**فتح ياب** :- (ــــ+يا+بْ)-[و____ فتح مند]

**فتح خان** :- (فَ+ت+حْ+خا+نْ)-[اس-مع]- د افغانستان د باچا (امير) دوست محمد خان ورور چې د هرات حاکم وۀ وزير وۀ د احمدشاه ابدالي خاندان د کابل نه وېستے وۀ.

**فتحه** :- (فَ+ت+حَ)-[ع-اس-مو-ج:حې]- (۱) زورَ- (۲) د جمعې په نمونځ کښې چې د امام په خطا کېدلو کښې د مقتدي د قرات صحيح لفظ په زوره وئيل. (۳) د ((فتح)) بدل شکل. و___ فتح.

**فتحه مند** :- (ــــ+م+نْ+د)-[و____ فتح مند]

**فتراک** :- (ف+تْ+را+ك)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]- د څرمنې هغه تسمې کومې چې د آس د زين دواړو طرفونو ته لګېدلي وي. دې سره ښکار يا نور څۀ ضروري څيزونه تړلے شي. پړوکے- پړوکي.

د پياده حــــافظ بــه غم د لاړې ورك شي
که ئې وصل که سپاهيان و خپل فتراك ته (حافظ)

**فتق** :- (ف+تْ+قْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) کشادګي- ويرتيا- ارت والے. (۲) د يو مرض نوم دے چې پکښې د مريض خوټې لوئې شي.

**فتنه** :- (ف+تْ+نَ)-[ع-اس-مو-ج:نې]- شورش- شرارت- فساد- پېلات- جنګ جګړه- بغاوت.

**فتنه اشوب** :- (ــــ+آ+شو+بْ)-[و____ فتنه انګېز]

په مخ ډېره ښائسته ئې نوم دې ځۀ دے؟
د عاشق د ځـــان بـــلا! فتنه اشوبه! (خوشحال)

**فتنه امېز** :- (ـــ+آمې+زْ)-[ع-تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه کار يا عمل چې ځۀ شرارت ورانے، فساد، شورشر ترې پېدا کېږي.

**فتنه گر** :- (ـــ+گَ+رْ)-[ع-پ-تر-اس-صف-مذ-ج:ان]- فساد پېدا کوونکے- شور و شر پورته کوونکے.

**فتـوت** :- (فُ+تُ+وْ+وَ+تْ)-[ع-صـف-مـذ-ج:ونـه]- مړنتـوب- مېـړه والـے بهادري- توره. (۲) سخاوت- مروت- سخي توب. (اصلاً د ((فتو)) معنى بل نه په سخاوت کښې زياتېدنه ده).

**فتوحات** :- (فُ+تُو+حا+تْ)-[ع-اس-ج]- دا د ((فتـوح)) جمع ده. او فتـوح د فـتح جمع ده- يعنې فتوحات جمع الجمع ده. خو ((فتوح)) کم تر استعمالېږي. (وـــــ فتح)

**فتور** :- (فُ+تُو+رْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) سست کېدنه- مړاوې کېدنه. (۲) ورانے- خلل- فساد. (۳) هله گوله- اړے گړے.

**فتـوىٰ** :- (فَ+تْ+وا)-[ع-اس-مـذ-ج:وې]- د شـرعې مطـابق حکـم. شـرعي فېصله.

**فتوىٰ ورکول** :- (د شرعې مطابق حکم ورکول- د شرعې مطابق فېصله کول- شرعي فېصله ورکول.

**فتيلـه** :- (فَ+تي+لَ)-[ف-مـو-ج:لـې]- (۱) د ډيـوې بـاتۍ. (۲) د مـالوچو هغـه باتۍ چې د اور لړلو نه پس په زخم کښې ورننه باسي.

**فټ** :- (فُ+ټْ)-[انگ-اس-مذ-ج:ونه]- د کچ يوه پېمانه چې دولس انچه اوږده وي- او درېو فټو نه يو گز جوړېږي.(انگ جمع:فيټ)

**فټ واري** :- (ـــ+وا+ري)-[انگ-پ-تر]- د فټونو په حساب- د فټونو په کچ.

**فټ** :- (فُ+ټ)-[انگ-اس]- پښـه- خپـه. (۲) د هـر ولاړ څيـز هغـه برخـه چې د پښـو (خپو) په ځاے وي- وېخ. لاندينے شے. (په پښتو کښې ځينې نورو الفاظو سره راځي).

**فټ پات** :- (ـــ+پا+ت)-[انگ-تر-اس-مذ-ج:ونه]- هغـه نرۍ (پخه) لار کومـه چې د پېدل تلونکو دپاره د لوے سړك په غاړو جوړه شوې وي.

**فټ نوټ** :- (ـــ+نو+ټْ)-[انگ-تر-اس-مذ-ج:ونه]- د کتاب هغـه حاشيه کومـه چې د کتاب د مخ په لاندينۍ حصه کښې ليکلے شي يا ليکلے شوې وي.

**فټهومو** :- (فُ+ټهو+مُو+نْ)-[تو لغنت]- د هنـدۍ د جملې ((پهـټے مُونهـه)) وران شـکل دے.

**فټه** :- (فُ+ټَ)-[انگ-پ-تر-اس-مو-ج:فُټې]- د يو فټ پېمانـه- پـه کـوم چې د مدارسو هلکان خطونه کچ کوي- او د دې په امداد کرښې راکاږي.

**فجاجـت** :- (ف+جا+جَ+تْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- کچـه والـے- اوم والـے- د کـم وخت يا عمر- بچې او مغلن.

**فجار** :- (فُ+جا+رْ)-[ع-اس-ج]- د فاجر جمع ده. (وـــــــ فاجر).

**فجائع** :- (فَ+جا+ئے+عْ)-[د فاجعه يا فجيعه جمع ده.

**فجر** :- (فَ+جَ+رْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونـه]- سحر- سحر وختـي- هغـه وخت چې د شپې د تېرېدلو نه پس رڼا ښکاري.

**فجور** :- (فُ+جُو+رْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) بدکاري- بـد چلنـدي- بـد چلنـي. (۲) زنا- اغلام.

**فجيع** :- (فَ+جي+ع)-[ع-اس-مذ-ج:ان]- درد ناك- المناك.

**فجيعت** :- (فَ+جي+عِ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-سخت درد- مصيبت غم- ناورين.

**فجيعه** :- (فَ+جي+عَ)-[ع-اس-مو-ج:عې]- لويه حادثه- دردناکه حادثه.

**فحاش** :- (فَ+حْ+حا+ش)-[ع-اس-مذ-ج:ان]- (۱) فحش کارونـه کـوونکے- د بې شرمۍ کارونه کوونکے- بدکار- بدچلنده. (۲) بې شرمۍ او د بې حيايۍ خبرې کوونکے.

**فحاشـي** :- (فَ+حْ+حا+شي)-[عـف-تـر-اس-مـو]- (۱) فحـش کارونـه- د بـې شرمۍ کارونه کونه. (۲) بدکاري- بد چلني. (۳) پوچ گويي. پوچه خولـه خوزونه- کنځل ماري.

**د فحاشي اډه** :- (د بدو کارونو مرکز- هغه ځاے چې بدکاره او بد چلنه خلک را جمع کېږي- او بد کارونه (خصوصاً زناکاري) کوي.

**فحش** :- (فَ+حَ+شْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- د بې حيايۍ کار- بې شرمۍ خبره- هغه حرکت يا خبره کومه چې جنسي (شهواني) جذبات را لړزوي. گنده- جنسي- شهواني- خراب.

**فحـوا** :- (فَ+حْ+وا)-[ع-اس-مـذ]- (۱) مفهـوم- مطلـب- مضـمون. (۲) طـرز- انداز- طريقه- لار. (په پښتو کښې په مرکب شکل کښې استعمالېږي) لکه: د فحوا ئې کلام نه څرگندېږي چې........

**فحواې کلام** :- (فَ+حَ+وا+ې+کَ+لا+مْ)-[ع تر-اس-مـذ]- د کـلام مطلب. د خبرو مفهوم يا مقصود.

**فخ** :- (ف+خْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- لومه- دام.

**فخامـت** :- (فَ+خا+مِ+تْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- لـويي- لـوے والـے- بزرگـي- مشري- عظمت- جلالت.

**فخـر** :- (فَ+خَ+رْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- (۱) شـان- شـوکت- عـزت- شـرف (۲) وياړ- ناز- کبر. (د عربۍ په مرکباتو کښې ئې تلفظ (فَ+خْ+رُ) شي لکه: فخرالنساء. (۳) د نارينه ؤ او د زنانوؤ په نومونو کښې راځي.

د سلطان د خان په نامو ئې غلط کړے
د عيسىٰ فخـر په اسم د مسکين شي (سعيد)

**فخر کائنات** :- (ـــ+کا+ئے+نا+تْ)-[عـف-تـر-اس-مـذ]- حضـور پـاك صلى الله عليه و اله وسلم مراد دے.

**فخراج** :- (فَ+خْ+را+جْ)-[ف-اس-مذ]- د مشهور قيمتي کاڼي (هيـره) کـوه نور نوم. چې مغليه بادشاهانو سره وۀ- او بيا نادرشاه تربنه يوړو. د هغې نـه پس د افغانستان بادشاهانو ته پاتې شو. د شاه شجاع نـه رنجيت سنگهـ قبضه کړو او د هغه نه پس د برطانيې د بادشاهانو د تاج زينت جوړ شو.

**فخر الدين رازي** :- (اس-مع]- امام فخر الدين رازي ډېر لوے عـالم فاضـل وۀ. د نسـب سلسـله ئـې حضـرت ابـوبکر صـديقؓ سـره يوځـاے کېـږي. پـه پنځوېشتم رمضان المبارك کال **۵۴۳** هجري کښې زېږېدلے وۀ او پـه اول شوال کال **۲۰۲** هجري کښې د هرات په مدرسه کښې پـه حق ورسـېدۀ. د شهاب الدين غوري په زمانه کښې ئې ډېره اوچته مرتبه لرلـه. چېرتـه چې به تلو نو درې سوه شاگردان به ئې جلب کښې وو. ډېر کتابونه ئې ليکلي دي. تفسير کبير ئې مشهور تصنيف دے.

**فخـري** :- (فَ+خْ+ري)-[ف-اس]- (۱) د انگـورو يـو قسـم دے. (۲) (ع) اعـزازي- انرېري.

**فخريه** :- (فَ+خْ+ري+يَ)-[ع-تف]- په فخر سره. په ناز او وياړ سره.

**فخيم** :- (فَ+خي+مْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- لـوے- سـتر- مشـر- بزرگ- د مرتبې خاوند.

**فـدا** :- (ف+دا)-[ع-صف]- (۱) قربـاني- (۲) فديـه- سربها. (۳) عاشـق- مئـين. قربانېـدل- ځارېـدل- صـدقه کېـدل- د چـا دپـاره سـر ورکـول. سـخت مئينېدل- عاشق کېدل.

**فدايي** :- (ف+دا+يي)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان]- فدا کېدونکی- قربانېدونکی- صدقه کېدونکی- هغه کس چې د کوم مقصد وغېره دپاره د خپل سر شېندلو ته تيار وي. جانباز- سر ورکوونکی.

**فدوي** :- (ف+دَ+وي)-[ع-صف-مذ-مو:یَ]- فدا کېدونکی- سر شېندونکی- عموماً لوی سړي يا لوی افسر ته خط يا درخواست ليکلو په وخت خپل نوم سره په طور د عاجزۍ ليکلی شي.

**فدويت** :- (ف+دْ+وِي+یَ+تْ)-[و_____ فداکاري]

**فديه** :- (ف+دْ+یَ)-[ع-اس-مو-ج:ئې]- (۱) سربها. د قاتل د طرفه کوم رقم چې د صلحې دپاره د مقتول وارثانو له ورکولی شي. (۲) د قيدي يا د نيولې شوي مال د را خلاصولو دپاره ورکېدونکی رقم. (۳) صدقه- کفاره.

**فر** :- (فَ+رْ)-[ف-اس-مذ]- د شان- شوکت- شکوه. عموماً کر سره يو ځای راځي. يقين ((کروفر))

**فرات** :- (فُ+را+تْ)-[ع-صف]- (۱) خوږې او يخې اوبهٔ- (۲) (اس-مع) په عراق کښې د مشهور سيند نوم.

زړهٔ مې تېر شوی ساعت غواړي قرار صبر نهٔ کا
کلـه بـــه بېرته چېـــې تللې د فرات راشي (حافظ)

**فـراخ** :- (فَ+را+خْ)-[ف-صف-مذ-مو:ه]- ارت- ارت بېرت- کشاده. لوی وسيع- پراخ.

کهٔ جهان د بې هنرو ته فراخ دی
يو لحد دی هنر مندو لـره تنګ (رحمان بابا)

**فراخ والی** :- (__+وا+لی)-[ف پ-تر-اس-مذ]- کشادګي- فراخي- وسعت- لوی والی.

**فراخي** :- (فَ+را+خِي)-[ف-اس-مو]- ارت والی- ويړوالی- کشادګي- وسعت- پراخي. (۲) شته مني- اسودګي- خوشحالي. (۳) ډېروالی.

**فرار** :- (ف+را+رْ)-[ف-اس-مذ]- تېښته- تښتېدنه- زغل.

بل نشان د اصل مه غواړه سعيده
له نا اهلو چې ئې تل پيشه فرار وي (سعيد)

**فـراز** :- (ف+را+زْ)-[ف-اس-مـذ-ج:ونـه]- اوچت- پورتـه- هسـك- اوچتـوالی- لوړوالی- بلندي.

دا قاعده ده لکه لوړ هومره ژور شي
يو صورت دي هم نشيب شي هم فراز (رحمان بابا)

**سرفراز** :- (سَ+رْ+__)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه]- (۱) سر اوچت لرونکی سر هسك لرونکی. (۲) عزتمند- سر لوړی. (۳) د نارينهٔ په نومونو کښې راځي.

**فراست** :- (ف+را+سَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونـه]- هوښيارتيا- دانايي- فهم- عقلمندي- زيرك توب- د خپل عقل او فهم له کبله صحيح قياس جنګونه- قيافه شناسي. لکه: هغه په خپل فراست سره معلومه کړه چې دا سړی په څهٔ بد نيت راغلی دی.

نهٔ ئې فهم او فراست وي نهٔ ئې عقل
خالي نقش لکه عکس د معکوس (رحمان بابا)

**فراست نامه** :- (__+نا+مَ)-[ف-تر-اس-مو-ج:مې]- د قيافه شناسۍ کتاب- د چا د څېرې نه د هغهٔ د زړهٔ حال وغېره معلومولو کتاب.

**فراسياب** :- (ف+را+س+يا+بْ)-[ف-اس-مع]- د افراسياب مخفف دی.

**فراش** :- (فِ+را+ش)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- فرش- د غوړولو يا غوړېدلې څيز- بستره.

**فـراش** :- (فَ+رْ+را+شْ)-[ع-اس-مذ-ج:ان]- (۱) فـرش غـوړوونکی- بستره سموونکی. هغه نوکر د چا کار چې بسترې غوړول تمبوال لګول- د رڼا دپاره ډيوې وغېره بلول وي. (۲) په مدينه کښې د حضور پاك صلی الله عليه وسلم د روضې او په مکه کښې د کعبې محافظ هم فراش بللی شي.

**فراش بين** :- (فَ+را+شْ+بي+نْ)-[اس-مذ-جم]- (۱) د سبزۍ نوم دی. (۲) د مېږو نه لږ نري شان پلې.

**فراشه** :- (فَ+را+شَ)- (۱) د ((فراش)) تانيث دی. (۲) (فراشه) ببوزی تتلی- پرپرکی.

**فراعنـه** :- (فَ+را+ع+نَ)-[ع-اس-ج]- د ((فرعـون)) جمـع ده. د مصـر د پخوانـو بادشاهانو لقب. (و_______ فرعون).

**فـراغ** :- (فَ+را+غْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونـه]- (۱) فـارغ ((تودنـه)) وزګارتيـا ازادي- فراغت. (۲) اسودګي- ارام- خوشحالي.

**فراغـت** :- (فَ+را+غ+تْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]- (۱) فـارغ کېدنـه- فـارغ ((تودنه))- وزګارتيا- ازادي. (۲) ارام- اسودګي- خوشحالي- مجازاً: مال دولت.

تر هغهٔ به بل نادان په جهان نهٔ وي
هر چې غواړي فراعت په دې دنيا (رحمان بابا)

**فراق** :- (ف+را+قْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- جدايي- بېلتون.

**فـراک** :- (ف+را+کْ)-[انـګ-اس-مـذ-ج:ونـه]- (۱) يـو قسم اوږد کـوټ. (۲) د ماشومانو يا د زنانوؤ اوږد خت (قميص). چې د بره نه تنګ او ښکته ارت وي.

**فراموش** :- (فَ+را-مو+شْ)-[ف-صف-مذ-مو:ه]- هېر- هېرشـوی- لـه يـادو وتـی.

**فرامين** :- (فَ+را+مي+نْ)- د فرمان جمع ده. (و_______ فرمان).

**فرانټير** :- (ف+را+نْ+ټي+ئ+ر)-[انګ-اس-مذ]- سرحد- پوله- ټاپې.

**فرانس** :- (ف+را+نْ+س)-[اس-مع]- په يورپ کښې د يو مشهور ملك نوم چې دارالحکومت ئې پېرس دی. فرانسـه هـم ورتـه وائـي. (ځينـې خلـك ئې(ف+را+نْ+س)- تلفظ کوي.

**فرانسيس** :- (ف+را+نْ+سي+س)-[فر-اس-مذ]- د فرانس د ملك اوسېدونکی.

**فرانک** :- (ف+را+ل+کْ)-[فر-اس-مذ-ج:ونه]- د فرانس د ملك سکه.

**فراوان** :- (فَ+را+وا+نْ)-[ف-صف-مذ-مو:ه]- ډېر- ډېر زيات- په کثرت سره- پريوان. پريمان

**فراواني** :- (فَ+را+وا+ني)-[ف تر-اس-مذ]- (۱) ډېر والی- پراواني- کثرت- افراط- پريواني. (۲) د هر څيز ډېر والی- اسودګي. خوش حالي.

**فراورده** :- (فَ+را+وَ+رْ+دَ)-[ف تر-صف]- راغورځولی شوی- راغورځولی- را پرې وتی. لکه: فراورده فصل.

**فراه** :- (فَ+را+هْ)-[اس-مع]- د هرات په خوا کښې د يو ښار نوم. يو مشهور عـالم ابونصر فراهي د دې ځـای اوسېدونکی وۀ. چې نصاب الصبيان نومې کتاب ئې ليکلی دی.

**فرائض** :- (فَ+را+يے+ضْ)-[ع-اس-ج]- (۱) د ((فريضه)) جمع ده. د شرعې هغه حکمونه چې ډېر ضروري دي. (۲) د ميراث د تقسيم علم.

**پنځګانه فرائض** :- (پَ+نْ+ځْ+ګا+نَ+__)-[ع پ-تر-اس-مذ]- د اسلام بنيادي پنځه فرضونه يعنې د شهادت کلمه- نمونځ- روژه- زکات او حج.

**فربه** :- (فَ+رْ+بَ)-[ف-مف]- غټ- ځورب- غټ وجود واله.

**فرتوت** :- (فَ+رْ+تُو+تْ)-[ف-ص]- ډېر زيات بوډا- ډېر زوړ- عمري سړے. زوړ ككړ- زوړ كړپ.

ډېر ځــوانــان چې احمقان دي لكه پياز دي
د خوشحال تر هوښيار مښك دے پير فرتوت (خوشحال)

**فرج** :- (ف+رْ+جْ)-[اس-مذ-ج:ونه/ فروج]- (۱) د ښځې پټ اندام- د ښځې ورو بولو ځاے. (۲) چاود- شګاف.

**فرج** :- (فَ+رَ+جْ)-[ع-مذ-ج:ونه]- ارت والے- كشادګي- كشائش. خوشحالي.

**فرجام** :- (فَ+رْ+جا+م)-[ف-صف-مذ-مو:ه]- انجام- اخېر- عاقبت. عموماً د لاحقې په طور نورو الفاظو سره راځي.

**بدفرجام** :- (بَ+دْ+ـــ)-[ف-تر-صف-مذ-مو:ه]- خراب انجام والـه- هغـه چې اخر خاتمه ئې خرابه وي.

**نېک‌فرجام** :- (نې+کْ+ـــ)-[ف-تر-صف-مذ-مو:ه]- نېك انجام والـه- هغـه چې عاقبت ئې ښۀ وي.

**فرجه** :- (فَ+رَ+جَ)-[ع-اس-مو]- پرانستل- وېړول- كشاده كول.

**فرجه** :- (فُ+رْ+جَ)-[ع-اس-مو]- چاؤد- چاوند- شګاف- وت.

**فرح** :- (فَ+رَ+ح)-[ع-اس-مو]- خوشحالي- خوښي- شادباني- مسرت- د روح تازګي.

**فـرح بخش** :- (ـــ+بَ+خْ+ش)-[عـف-تر-صف-مـذ-مـو:ه]- فرحت- يـا خوشـحالي بخښـونكے. خوشـحالوونكے- فرحنـاك- د روح تـازګي وركوونكے- مسرور كوونكے.

په غمزو په كـــرشمو په مكېزونو
فرح بخشي غم تراشي دل نوازي (خوشحال)

**فرح‌ناک** :- (ـــ+نا+کْ)-[ع-پ-تر-صف-مذ-مو:ه]- خوشحالي والـه- فرحت والـه- سرور والـه.

په دا هسې مرتتوب ئې افرين شه
چې په كار ئې محمدؐ شۀ فرحناك (خوشحال)

**فرحت** :- (فُ+رْ+ح+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) خوشحالي- مسرت- د زړۀ يـا د روح تازګي- فَرَح. (۲) د زنانوؤ او نارينوؤ په نومونو كښې راځي.

**فرخ** :- (فَ+رْ+خ)-[ع-اس-مذ]- د مرغۍ بچے.

زۀ لكه د فَرْخ په عُش دننه معاش غواړم
وجه د قدرت نه لرم هېڅ قوت ګذران ته (حافظ)

**فرّخ** :- (فَ+رْ+رِ+خْ)-[ف-صف-مذ-مو:ه]- مبارك- بختي- بختور- ښۀ بخت والـه- خجتـه. (اصلاً دا لفظ د «فر» او «رخ» نـه جوړ شـوے دے.(۲) د نارينۀ او د زنانوؤ په نومونو كښې راځي.

**فرخ‌اباد** :- (فَ+رْ+خ+آ+با+د)-[اس-مع]- د هند د نوي صوبې اترپـردېش يـو زوړ ښار چې پخوا د پښتنو يو لوے مركز وۀ. او پښتنو هلته ډېره موده بادشاهي كړې ده. د دغې علاقې (ضلعې) نوم هم فرخ اباد دے.

**فرخار** :- (فَ+رْ+خا+رْ)-[اس-مع]- په تركستان كښې د يـو ښـار نـوم چې د اوسېدونكو د ښائست دپاره ئې ډېر شهرت لالو.

خداے په كور كښې راكړه هغه توري ستركي تركه
اوس به ئـــي په مـــرسته څۀ فرخار لره ور درومم (خوشحال)

**فرخنده** :- (فَ+رْ+خ+نْ+دَ)-[ف-صف-مو]- (۱) خوشحاله- مباركه. ښۀ بخت والـه- بختوره- نېك مرغ. (۲) د زنانوؤ په نومونو كښې استعمالېږي.

**فرد** :- (فَ+رْ+د)-[ع-اس-صف-مذ-ج:ونه]- (۱) يـوازې- واحد- تنهـا. (۲) بې مثله- چې سيال نۀ لري- (۳) بېت- شعر.(۴) هغـه كاغذ يـا رجسـتر چې حساب كتاب پرې ليكلے شي. (۵) سپاهي- نوكر- يـوكس- (۶) د ګنجفې پاڼه.

**فرد جرم** :- (ـــ+جُ+ر+مْ)-[ع-ف-تر-اس-مذ]- د مقدمې د مثل هغه كاغـذ په كوم باندې چې د مجرم جرم او قانوني دفعه د شهادت نه وروسـتو ليكلے شي. ددې نه پس د ملزم بيـان او د هغـه د صفا يـي ګواهـان وغېره اخستے شي.

**فردا** :- (فَ+رْ+دا)-[ف-اس-ظ]- (۱) سبا- نن پسې راتلونكې ورځ.

كاشكې خط دې اماني و ماله راكړې
چـــې لـــه مـــا سره وعده كړې د فردا (رحمان بابا)

(۲) د قيامت ورځ-(فردائے قيامت هم ورته وائي).

**فرداً فرداً** :- (فَ+رْ+دَ+نْ+فَ+رْ+د+نْ)-[ع-تف]- يويـو كـس- ځـان ځـان لـه جدا جدا- بېل بېل (كس).

**فردوس** :- (ف+رْ+دَو+سْ)-[ع-اس-ظ-مذ]- باغ- جنت. د يو غوره جنت نوم. (اصلاً دا د عبراني ژبې «پردېس» دے. په عربي كښې فـردوس شـۀ. او په انګرېزي وغېره مغربي ژبو كښې (پېراډائيز).

**فردوسـي** :- (ف+رْ+دَو+سي)-[اس-مـع]- پـه يـو روايـت ۹۲۰-۱۰۲۰ء يـا ۱۰۲۵ء پـه بـل روايت كښې ۹۳۲- ۱۰۲۰ء) د فارسي ژبې د عظيم شاعر تخلص. نوم ئې ابوالقاسم حسن يا ابوالقاسم احمد وۀ. د دۀ عظيم الشـانه كارنامـه «شـاهنامه» ده چې شپېتۀ زره شعرونه لري. پـه ځينـو كتابونو كښې د دۀ او د سلطان محمود غزنوي په حقله يو قصه ليكلې ده، چې سـلطان محمـود ورلـه د يـو شـعر پـه بدلـه كښې د يـو اشرفۍ وركولو وعـده كړې وه. خو چې څۀ وخت دۀ خپل كتـاب مكمل كړ- نـو سلطان محمود ورله د اشرفۍ په ځاے روپۍ په انعام كښې وركولې. دۀ دغه انعام قبول نۀ كړ. او د سلطان هجو ئې وليكله او ېرتـه وطـن تـه لاړ. سلطان محمود وروستو پوره شپېتۀ زره اشرفۍ ور واستولې- خو چې استازے د فردوسي ښار (طوس) ته ورسېدو نو فردوسي مړ وۀ. او جنازه ئې د ښار نه راوتله. دغه رقم ئې استازي لور لـه وركول غوښتـل خـو ولـې هغې هم انكار اوكړو.

دا قصه د نوي تحقيقاتو لـه رويـه بېخي بې بنياده ثابتـه شوې ده. خو د غندنې كوم اشعار چې د سلطان محمود مخالفينو خواره كول هغه اوس هم مشهور دي.

**فرازنګي** :- (فَ+رْ+زا+ن+ګي)-[ف تر-اس-مو]- عقلمندي- زيركي. دانايي.

**فرزانه** :- (فَ+رْ+زا+نَ)-[ف-صف]- هوښيار- عقلمند- دانا.

**فرزجه** :- (فَ+رْ+زَ+جَ)-[ف-اس-مو-ج-جې]- د مـالوچو وغېـره هغـه بـاتۍ چې په دارو ولړلے شي او بيا په پټ اندام يا په زخم كېښودے شي.

**فرزند** :- (فَ+رْ+زَ+نْ+د)-[ف-اس-مذ-ج:ان]- زوے- پسر. كشـر تـه هـم د مينې په طور وئيلے شي.

**فرزنـد ارجمنـد**:- (ـــ+اَ+رْ+جَ+مَ+نْ+د)-[ف-تـر-اس-مـذ]- لائـق زوے- قابـل زوے. د چا لوے سړي د زوي د ذكر په موقع وئيلے شي.

**فرزين** :- (فَ+رْ+زِي+نْ)-[ ف-اس-مذ]- د شطرنج په مهرو كښې يوه اهمـه مهره وزير.

**فرس** :- (فَ+رَ+سْ)-[ع-اس-مذ]- اس- آس.

**فرسا** :- (ف+رْ+سا)-[ف-لاحقه]- د فارسي لاحقه ده. د نورو الفاظو نـه وروستو راځي. او د مښلو، سولولو يا تباه كولو معنٰى وركوي.

**فرســتاده** :- (فِ+رِ+سْ+تـا+دَ)-[ف-تـر-اس-مـذ-ج:ګـان]- لېـرلے شـوے-

استازے-پېغام بر- قاصد.

**فرسخ** :- (فَ+رْ+سَ+خْ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]- د فاصلې يو پخوانے کچ چې د درو ميلونو برابر وۀ.(پخواني ميل به د ځلورو زرو ګزونو وۀ او يو ګز به د څلېرېشتو ګوتو يا د شپږو موټو برابر وۀ).

**فرسنګ** :- (فَ+رْ+سَ+نْ+ګ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]- د فاصلې يو کچ- چې د درو ميلو هومره وي- فرسخ- زردانګے. په ايران کښې دا د شپږو زرو ګزونو برابر وي).

چې غريب شي په وطن کښې فرق ئې نۀ وي
کۀ فرسنګ ئې وي تر ميـــانه کـــه جريب (رحمان بابا)

**فرسودګي** :- (فَ+رْ+سُو+دَ+ګي)-[ف تر-اس-مو]- ډېر منبلې شوے حالت- ډېر سُولېدنه. ډېر استعمال شوے حالت. (۲) زوړوالے- پخوانے توب.

**فرسوده** :- (فَ+رْ+سُو+دَ)-[ف-صف]- منبلے شوے- سولېدلے- ډېر زيات استعمال شوے. (۲) مجازاً: زوړ- پخوانے- ډېر زوړ.

**فرش** :- (فَ+رْ+ش)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) لاندې غوړولو څيز- د خورولو څيز(درې- قالين وغېره) (۲) د کوټې وغېره زمکه چې په خښتو يا سيمټو پخه کړے شوې وي.(۳) زمکه وغېره چې خلک پرې ګرځي.

چې خبر نۀ ئې دخپل صورت له فرشه
په دروغـــه لافـــې مه کوه له عرشه (خواجه محمد)

**فرښته** :- (فَ+رِ+خْ/ش+تَ)-[اس-مو-ج:تې]- فرشته- ملائکه. هغه نوراني مخلوق- کوم چې د کائنات بې شمېره کارونه سرته رسوي.

**فرصت** :- (فُ+رْ+ص+تْ)-[ع-مذ-ج-ونه]- (۱) مهلت- فراغت- وزګار وخت- وزګارتيا. (۲) موقع- مناسب وخت. لکه: ښۀ فرصت له لاسه ايستل.

تۀ چې څو وخته فرصت په دنيا غواړې
چا مـــوندلے دے فرصت پـــه دا دنيا (رحمان بابا)

**فرض** :- (فَ+رْ+ض)-[ع-اس-مذ-ج:ونه-فرائض]- (۱) هغه کار يا عمل کوم چې د خدائے پاک په حکم کول ضروري وي.(۲) د خپلې مرتبې يا نوکرۍ په وجه ذمه واري. (۳) د ښو اخلاقو له رويه ضروري کار يا عمل. (۴) په نمانځه کښې هغه رکعتونه د کومو ادا کول چې لازمي وي.

**فرض کفايه** :- (ـــ+ک+فا+یَ)-[ع-تر-اس-مو]- په شريعت کښې هغه حکم چې ((فرض)) (لازمي) وي. خو که په اولس کښې يو څو کسان ئې ادا کړي. نو د نورو خلکو ذمه داري هم ادا شي. خو که په اولس کې هېڅوک هم دغه فرض ادا نۀ کړي نو بيا د اولس هريو وګړے پرې ګناهګار ېږي.(لکه د جنازې نمونځ)

**فرض محال** :- (ـــ+م+حا+لْ)-[ع-تر-اس-مذ]- د بحث يا د مسئلې د حل کولو دپاره څۀ داسې خبره (صحيح) تسليمول- کومه چې حقيقت کښې ناشونې وي. لکه بالفرض محال که نمر د قبلې د ډډې را وخېژي نو.......

**فرضيات** :- (فَ+رْ+ضـی+يا+تْ)-[ع-اس-ج]- د ((فرضيه)) (فرض) جمع ده. (۱) فرض کړې خبرې- فرض خبرې. (۲) هغه ذمه دارۍ چې فرض دي.

**فرط** :- (فَ+رْ+طْ)-[ع-اس]- زياتے- زياتوالے- ډېروالے- کثرت. (عموماً نورو الفاظو سره په اضافي مرکباتو کښې راځي. لکه فرط غضب- فرط غم- فرط محبت وغېره.)

**فـرع** :- (فَ+رَ+عْ)-[ع-اس-مـو-ج:ې-فـروع-فروعـات]- (۱) څانګـه- وړوکے ښاخ. (۲) د ((اصل)) ضد دے. يعنې چې دبل کوم څيز نه راوتے وي.

**فرعون** :- (ف-رْ-عَـو-نْ)-[اس-مـذ-ج:ان-فراعنـه]- د مصر د ملك د پخواني زمانې د بادشاهانو لقب. د فرعونانو دېرشو خاندانونو په مصر باندې په زرګونو کاله بادشاهي کړې ده. د دوي اخري بادشاه لـه سکندر اعظم ماتې ورکړه. او دغه شان د فرعونانو د اصل بادشاهانو خاتمه وشوه. خو وروسته يونانيانو هم ترڅۀ وخته دغه لقب استعمالوه.

په قرآن پاك کښې چې د کوم فرعون ذکر راغلے دے د هغه تعلق د دوي د يويشتم خاندان بادشاه سره دے. حضرت موسیٰ عليه السلام خپل قوم (بني اسرائيل) د دۀ په وخت کښې د مصر نه رايستلے وۀ. او دغه فرعون چې دوي پسې راوتے وۀ په بحيره قلزم کښې غرق شوے وۀ. اکثر فرعونـان ډېـر متکبـر او مغـروره وو. ځکـه د دوي دغـه لقـب (فرعـون) استعمال وروستو د مغروره- متکبر ظالم- سرکش- وغېره معنو کښې شروع شۀ.

د فرعون په څېر به ناست وي
بـــې پـــــروا او کبــــريا (رحمان بابا)

**فرعونيت** :- (ف+رْ+عَـو+ني+یَ+تْ)-[عف-تر-اس-مذ]- مجازاً غـرور تکبر- لويي- په ځان غاورتوب- ځان ډېر زورور او طاقتور ګڼل سرکشي- ظلم.

**فرعي** :- (فَ+رْ+عي)-[عف تر-صف]- (۱) هغه چې فرع (څانګه) سره تعلق لري فرع يا څانګې ته منسوب. (۲) جز- څانګيز.

**فرغانـه** :- (ف+رْ+غـا+نَ)-[اس-مـع]- مـا وراء النهـر کښـې د سـمرقند او د اندرجان ترمېنځه يوه صوبه- د بابر مغلي پلار د دې علاقې بادشاه وۀ.

**فرغل** :- (فَ+رْ+غ+لْ)-[ف-اس-مـذ-ج:ونـه]- هغـه ګرمـه لبـاده چې پـه کښـې مالوچ ډك کړې شوې وي. د مالوچو نه ډك شوے لوے کوټ.

**فرفر** :- (فَ+رْ+فَ+رْ)-[اس-صوت]- د مرغو د پرله پسې الوتلو اواز. مجازاً زر زر- بې د ودرېدلو يـا دمې بغېـر د سا اغسـتلو- لکـه: فرفر ټول نظم ئې واورولو.

**فرفـره** :- (فَ-رْ+فَ+رَ)-[ف-اس-مـو-ج:رې]- د ماشومانو د لوبـو يـو څيـز چې غونډ شان وي. تار ترې چاپېره کړي او چې تار په زور سره راکاږي نو بيا تر ډېر ساعته پورې په زمکه چورلي. چورلندے. (اردو- لټو)

**فرقـان** :- (فُ+رْ+قا+نْ)-[ع-اس]- (۱) هغـه څيـز چې پـه رښتياؤ او دروغـو کښـې بېلتون اوکړي. (۲) قرآن شريف چې په حق او باطل کښې بېلتـون کوي يا ښايي.

په فرقان په هدايت فاروق پوهېږي
نۀ بوجهل، بـــولهب ته هدايت کا (خوشحال)

**فرقت** :- (فُ+رْ+قَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج-ونه]- جدايي- بېلتون- جدا والے.

**فرقدان** :- (فَ+رْ+ق+دا+نْ)

**فرقـدين** :- (فَ+رْ+قَ+دي+نْ)-[ع-اس-مـع]- هغـه دوه سـتوري چـې د قطب ستوري په خوا کښې دي او چاپېره ترې چورلي. په ديو کښې هر يو ته ((فرقد)) وائي.

فرقدېنو نه کړم خلاص د غم له دينه
زړۀ افګار په فـــراقت ديده ګريانه (حافظ)

**فرقه** :- (فِ+رْ+قَ)-[ع-اس-مو-ج:قې]- ټولے- ټولنه- جماعت- ګروه.

**فرقه ايز** :- (ـــ+ای+زْ)-[او___ فرقه وارانه]

**فرقه بندي** :- (ـــ+بَ+نْ+دي)-[عف تر-اس-مو]- فرقې جوړول- ټولے جوړول. په يو لوے اولس کښې جدا جدا ډلې جوړول. ډله بندي.

**فرقه پرستي** :- (ـــ+پَ+رَ+سْ+تي)-[عف تر-اس-مو]- دخپلې خپلې فرقې يا د ټولې مرسته اعانت اويره او د بلې فرقې سره مخالفت او دښمني.

**فرقوي** :- (فِ+رْ+قَ+وي)-[عف تر-صف]- فرقو سره تعلق لرونکے- فرقو ته

منسوب- مختلفو ډلو- ګروهونو وغېره سره تړون لرونکے- فرقه وارانه.

**فرلانګ** :- (فَ+رْ+لا+نْ+ګ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه]- فاصلې د کچ کولو يوه پيمانه چې دوه سوه او شل ۲۲۰ ګزه وي. د اتو فرلانګو نه يو ميل جوړيږي.

**فرلو** :- (فَ+رْ+لو)-[انګ-اس-مذ]-(۱) د فوځيانو چټي- وطن ته د تللو چټي. (۲) د يو خاص مودې د نوکرۍ نه پس هغه چټي چې سره د تنخوا ورکولے شي.

**فرم** :- (ف+رْ+مْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه]- هغه کاروبار چې په کښې ګڼ کسان حصه دار- کارخانه = لوے دوکان.

**فرما** :- (ف+رْ+ما)-[انګ-اس-مو-ج:مې]- (۱) د انګرېزي د فرېم (يا د فارم) وران شکل دے- هغې تختې ته وائي کومه چې د ازمېښت د پاره اول چاپ کولے شي. (۲) هغه چوکاټ چې دبل کوم څيز د جوړولو د پاره د سانچې کار ورکوي- سانچه. (۳) سانچه- قالب.

**فرمــــان** :- (فَ+رْ+مـــا+نْ)-[ف+اس+مذ+ج:ونـــه]- (۱) حکــــم- اډر. (۲) بادشاهي حکم- بادشاهي خط کوم چې د بادشاه له طرفه اميرانو وزيرانو ته لېږلے شي. (۳) د کوم لوے بزرګ د خولې خبره. (۴) د کوم مذهبي کتاب حکم يا بيان. لکه: د قرآن پاك فرمان دے چې.........

**فرمان بردار** :- (ـــ+بَ+رْ+دا+رْ)-[ف تر-صف مذ-مو:ه]- (۱) حکم منونکے- تابع- (۲) نوکر- ملازم.

**فرمان برداري** :- (ـــ+بَ+رْ+دا+ري)-[ف تر-اس-مو]- د حکم منته. په حکم عمل کول- اطاعت- فرمان وړنه.

**فرمان روا** :- (ـــ+رَ+وا)-[ف تر-اس-مذ-ج:يان]- حکم چلوونکے- حاکم- بادشاه.

**فرمائش** :- (فَ+رْ+ما+ئِ+شْ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) حکم-فرمان (۲) د چا نه د څۀ څيز يا د څۀ کار غوښتنه. غوارنه- طلب- دا غوښتنه يا مطالبه حکماً هم کېدے شي او بغېر د حکم نه هم.

**فرملي** :- (فَ+رْ+مَ+لي)-[فرانګ-تر-صف]- په رسمي ډول- د رسم و رواج مطابق. په قانوني توګه.

**فرموده** :- (فَ+رْ+مو+دَ)-[ف-اس-مو-ج:دې]- (۱) د چا مشر يا بزرګ د خولې قول يا بيان- لکه: فرموده رسول.

هـر دانـا وبلـه ببـل کـړه
فرمــــوده او نـــافرمود

(۲) حکم- فرمان. لکه: ستاسو د فرمودې سره.

**فرنټ** :- (فَ+رَ+نْ+ټ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) مخامخ- په مخ- وړاندې. (۲) بـاغي- سـرکش- غـاړه غـړونکے. د دې لفظ دا دويمې معنې په انګرېزۍ کښې نشته. د اردو، پښتو وغېره ژبو اختراع ده. (۳) محاذ- د جنګ مېدان. (۴) ډله- پارټي- جماعت کوم چې بلې ډلې يا د حکومت په مقابله کښې جوړ کړے شي. لکه: پښتون فرنټ.

**فرنټ لائن** :- (ـــ +لا+ئي+نْ)-[انګ تر-اس-مذ-ج:ونه]- اولنے قطار. د ټولو نه وړانديني قطار يا ډله يا مېدان په جنګ کښې په اول سر کښې جنګېدونکے لښکر. يا د جنګ په مېدان کښې خاص د جنګ ځاے.

**فرنټيئر** :- (ف+ر+نې+ټي+ئ+ر)-[انګ-اس]- (۱) سرحد- پُوله- حد.

**فرنګ** :- (فَ+رْ+نَ+ګ)-[اس-مع]- د فېرنګيانو ملك- يورپ. (۲) فېرنګيان- يورپين- انګرېزان.

**فرنګســتان** :- (ف+رَ+نْ+ګ+سْ+تـا+نْ)-[اس-مـع]- (۱) د فېرنګيـانو ملـك- انګلستان- انګلينډ. (۲) يورپ.

**فرنګـي** :- (فَ+رَ+نْ+ګَ+ی)-[ف-اس-مـو]- د فـرنګے تانيـث دے. فرنګڼـه- پېرنګڼه- ميمه.

**فرنګے** :- (ف+رَ+نْ+ګے)-[اس-مع]- پېـرنګے- يـورپين خصوصـاً انګرېـز د برطانيې اوسېدونکے.

**فرني** :- (ف+رْ+ني)-[ف-اس-مو-ج:انې]- د خوراك يو قسم خوږ څيز چې د وريجو (وريژو) د مېده اوړو، پَيو او خوږو نه جوړولے شي. پرنې- پېرنې. چې وريجې (وريژې) اوړه شوي نۀ وي- او هسې دل شوي وي نو بيا ورته کير وائي). نن سبا په فېرنۍ کښې مېوې لکه کېلې او کېك وغېره هم ګډولے شي.

**فرنيچر** :- (فَ+رْ+ني+چ+رْ)-[انګ-اس-مذ]- په کور کښې د ناستې ملاستې وغېره هغه سامان چې د لرګي نه جوړولے شي. لکه: پالنګونه- کرسۍ- مېزونه- صوفې وغېره.

**فــرو** :- (فُ+رَو)-[ف-صـف]- (۱) ښکته- کـور- لاندې- ادنٰی. (۲) عمومـاً د سابقې په طور نورو الفاظو سره راځي چې د لاندې-ادنٰی وغېره معنې ورکوي)

**فروکش** :- (ـــ+ك+شْ)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه]- سامان وغېره کوزوونکے- استوګنه کوونکے.

**فروټ** :- (ف+رُو+ټ)-[انګ-اس]- د ونو مېوه.

**فرودګاه** :- (ف+رُو+د+ګا+هْ)-[ف تر-اس-ظ]- د کوزېدلو ځاے- هغه ځاے چېرته چې راکوزېدنه کولے شي. د جهازونو د کوزېدو او ختلو مېدان.

**فروردين** :- (فَ+رْ+وَ+رْ+دي+نْ)-[ف-اس-مع]- د شمسي کال وړمبۍ مياشت چې مارچ اپرېل کښې راځي. په دې مياشت کښې نمر د حمل په برج کښې وي.

**فـروري** :- (فَ+رْ+وَ+ري)-[انګ-اس-مع]- د عيسوي (مېلادي) کال دويمه مياشت چې اتۀ ويشت ورځې لري. (په څلورم کال کښې يوه ورځ سېوا کړے شي) اصلي لفظ فېب رواے ري February دے.

**فـروز** :- (فُ+رُو+زْ)-[ف-لاحقه] فارسي لاحقه ده. په پښتو کښې ځينو نورو الفاظو سره راځي. او د روښانه- بـل روڼ معنې ورکوي. ځينې وخت ورسره الف هم ور زيات کړے شي. لکه: جلوه فروز- جلوه افروز- وغېره.

**فروزان** :- (ف+رَو+زا+نْ)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه]- بلېدونکے- رڼا ورکوونکے- روڼ- روښانه.

**فـروش** :- (فُ+رو+شْ)-[ف-لاحقه]- د فارسي ژبې لاحقه ده. په پښتو کښې ځينو نورو الفاظو سره راځي. او د خرڅ- خرڅولو پلورلو معنې ورکوي.

**سر فروش** :- (س+ر+ـــ)-[ف تر-اس-مذ-ج:ان]- سرښېندونکے- د سر قرباني ورکوونکے.

**فروشــــنده** :- (ف+رو+ش+نْ+دَ)-[ف تـــر-اس-مـــا-ج:ګـــان]- خرڅـــوونکے- پلورونکے.

همه واړه ئې ټکان دې ټګي کاندي
فروشنده او خـــــريدار د دې دنيا (رحمان بابا)

**فروشي** :- (فُ+رو+شي)-[ف تر-اس-مو]- (۱) خرڅونه- پلورنه. (۲) د لاحقې په طور نورو الفاظو سره راځي- او د خرڅ يا پلورنې معنې ورکوي.

**فروع** :- (فُ+رُو+عْ)- د ((فرع)) جمع ده. [وـــــــ فرع]

**فـــروغ** :- (فَ+رو+غْ)-[ف-اس-مـذ]- (۱) رڼـا- زلـک- ځلـک- روڼ والـے- روښانتيا (۲) زياتوالے- ترقي.

**فـروغ بخـش** :- (ـــ+بَ+خْ+شْ)-[ف تـر-صـف-مـذ-ج:ه]- (۱) رڼابخښـونکے ۲) ترقي ورکوونکے.

**فروغ حاصلول** :- «(۱) رڼا حاصلول- روښانتیا موندل. (۲) زیات روښانه کېدل- ځلک موندل. (۳) مجازاً ترقي موندل. وده موندل

**فروغ مند** :- (ــــم+نْ)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه]- فروغ واله- رڼا واله- روڼ- زلکنده- روښانه.

**فروغ موندل** :- (۱) رڼا موندل- رڼا زیاتېدل- رڼېدل- روښانه کېدل. (۲) ترقي موندل- وده کول.

**فرهاد** :- (فَ+رْ+ها+د)-[اس-مع]- د شیرین فرهاد د مشهور روماني قصې هیرو چې د ایران د بادشاه خسرو په ښځه باندې مئین شوے وهٔ. بادشاه ددهٔ نه د ځان د خلاصولو دپاره ورته دا شرط وړاندې کړو چې که دے غر سورے کړي او د پیو واله ترې د هغه تر محله پورې راولي نو شیرینه به وګټي. دا لېونے غر ته ارم شو او اخر ئې غر سورے کړو او واله ئې ترې را روانه کړه. بادشاه ورته یو مکاره بوډۍ واستوله هغې ورله په ژړا ژړا دا دروغ خبر ورساوهٔ چې شیرینه مړه شوه. فرهاد چې دا واورېدهٔ نو په هغه تېشه په کوم ئې چې غر کنستهٔ خپل سر وواههٔ او ځان ئې مړ کړ. شیرینې چې دا واورېدل نو هغې هم وریسې ځان مړ کړ. «دا قصه ټوله رښتیا نهٔ ده بلکې ډېرې خبرې په کښې د داسې قصو په شان د ځانه ګډې کړې شوي دي».

**فرهنګ** :- (فَ+رْ+هَ+نْ+ګ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]- زده کړه- دانش- پوه علم.

ولاړلو جنت تــــه چــــې پــه پوهه خبر نهٔ وو
ولاړلو دوزخ ته چې ئې لاهې د فرهنګ کړې (خوشحال)

(۲) هغه کتاب چې په کښې د یوې ژبې الفاظ او د هغو معنې وغېره لیکلې شوې وي. لغت- ډکشنري.(۳) د کوم خاص کتاب د ګرانو الفاظو فهرست او د هغو معنې.

**فرهنګ نویس** :- (ـــ+نَ+وي+سْ)-[ف تر-اس-مذ-ج:ان]-فرهنګ لیکونکے- دلغت کتاب تیاروونکے- لغت نویس.

**فرهنګ نویسي** :- (ـــ+نَ+وي+سي)-[ف تر-اس-مو]- د لغت د لیکلو کار- لغت نویسي.

**فرهنګ یالے** :- (ـــ+یا+لَے)-[ف پ-تر-اس-صف-مذ-ج:لي]- د فرهنګ څښتن- دانشور- پوهان.

ختڪ خو پرېږده په درست افغان کښې
عجب که هســـې فـــرهنګیالے راشي (خوشحال)

**فرهنګي** :- (فَ+رْ+هـ+نْ+ګي)-[ف تر-صف]- فرهنګ سره تعلق لرونکے- فرهنګ ته منسوب.

**فري** :- (ف+ري)-[انګ-صف]- (۱) ازاد- ایله. (۲) وړیا- مفت- بې بیعې.

**ـــ مې سن** :- (ـــ+مې+سَ+نْ)-[انګ-اس-مذ]- یو خفیه شان جماعت (ټولے) دے چې غړي ئې یوبل سره ډېره زیاته همدردي لري. د دې ښاخونه په درسته دنیا کښې خوارهٔ دي. اصلاً دا دیهودو یو پټ تنظیم وهٔ، چې د مسلمانانو خلاف جوړ شوے وهٔ. د دې جماعت ټولې خبرې ښځې پټې ساتلے شوې- خو اخر مسلمانان پرې اګاه شول.(فرامشن) هم ورته وائي.

**فریاد** :- (فَ+رْ+یا+دْ)-[ف-مذ-ج:ونه]- (۱) د درد دوك په وجه ژړا کول او چغې وهل. (۲) د امداد دپاره ناره سورې وهل. (۳) شکایت- د انصاف د غوښتنې دپاره (په ژړا ژړا) خپل تکلیف بیانول. ژړا- انګولا.

**فریادرس** :- (ـــ+رَ+سْ)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه]- فریاد ته رسېدونکے د چا تکلیف لرې کولو دپاره ورسېدونکے. په چا د ظلم زور خلاف شکایت اورېدونکے.

هــم هغــــه مــــې خنــــدوي چــې ژړوي مــې
بـــل ځــــوك نشـــته د رحمٰـــن فریــــاد رس

**فریادنه** :- (فَ+رْ+یا+د+نْ+رِ+نَ)-[اس-مو-ج:نې]- د فریاد تانیث دے

**فریادي** :- (فَ+رْ+یا+دي)-[ف تر-اس-مذ-ج:ان]- فریاد کوونکے- شکایت کوونکے. د انصاف دپاره ژړا انګولا کوونکے- واویلا کوونکے- مدعي- دعویٰ کوونکے.

**فرېب** :- (فَ+رې+بْ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]- دوکه- مکر- چالاکي- ټګي- دغا.

**فرېب امیز** :- (ـــ+ا+مي+زْ)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه کار یا خبره چې په کښې څهٔ ټګي یا دوکه وي.

**فرېب رز** :- (ـــ+ر+زْ)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه]- دوکه باز- دوکه ورکوونکے. تېر اېستونکے.

**فرېب سازي** :- (ـــ+سا+زي)-[ف تر-اس-مو]- دوکه بازي- دوکه ورکونه- ټګي- تېر اېستنه.

**فرېب کاري** :- (ـــ+کا+ري)-[ف تر-اس-مو]- دوکه بازي- تېروېستنه. دوکه ورکونه- ټګي کونه.

**فرېب ګر** :- (ـــ+ګ+رْ)-[ف تر-صف مذ-مو:ه]- دوکه ورکوونکے- تېر وېستونکے- دوکه مار- ټګ- فرېبي.

**فرېب ګري** :- (ـــ+ګَ+ري)-[ف-پ-تر-اس-مع]- دوکه بازي- فرېب کاري- ټګنه- تېروېستنه.

**د نظر فرېب** :- (دَ+ن+ظ+رْ+ـــ)-[ف پ-اس-مذ]- د نظر دوکه- د یو څیز په بل رنګ ښکارېدنه. د یو څیز د اصل خلاف ښکارېدنه.

**فرېبنه** :- (فَ+رې+ب+نْ+رِ+نِ)-[د فرېبي تانیث دے]

**فرېبي** :- (فَ+رې+بي)-[ف-تر-اس-صف-ج:ان]- دوکه باز- دوکه مار دوکه ورکوونکے- چالاك- دغاباز.

**فري پان** :- (ف+ري+پا+نْ)-[انګ-اس-مذ]- پلنه کړېچې- لویه د پتېلې په شان ارکاره. «د انګرېزي لفظ (فرائي پېن) وران شکل دے».

**فرید** :- (ف+ري+د)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- (۱) یکتا- بې مثاله- بې نظیره (۲) یوازې- یکړ- تنها. (۳) د نارینهٔ او ښځو په نومونو کښې راځي- «د زنانهٔ و په نوم کښې د تانیث «ه» هم ورسره زیاتولے شي».

**فرید** :- (ف+رِي+د)-[اس-مع]-(۱۱۷۳-۱۲۲۵ء) بابا فریدالدین مشهور ولي چې مزار ئې په پاك پټن کښې دے. د پښتون ولي خواجه بختیار کاکي مرید وهٔ. او د هند دهلي مشهور ولي نظام الدین اولیاء پیر وهٔ. شکرګنج ئې لقب دے ځکه چې په ماشومانو به ئې خواږهٔ وېشل.

**فریدالدین** :- (ـــ+دُ+دْ+دي+نْ)-[اس-مع]-(۱۱۱۹-۱۲۳۰ء) عطار ایراني شاعر- چې د تصوف ځینې مشهور کتابونه ئې لیکلي دي

**فریدون** :- (فَ+رِي+دو+نْ)-[اس-مع]- د ایران د یو مشهور بادشاه نوم- د جمشید د نسل څخه د ابتین زوے وهٔ. ضحاك یو ظالم باچا وهٔ- هغهٔ په خوب کښې ولیدل چې د جمشید د نسل څوك سرے به ددهٔ نه باچاهي اخلي نو هغه د جمشید د نسل خلك ووژل خو فریدون ترې بچ شه. په ځنګلونو کښې لوے شهٔ، چې ځوان شهٔ نو د ضحاك نه ئې بادشاهي واخستله. ډېر نیك او عادل بادشاه وهٔ.

جدا جدا بندي تنها د مـــــرګ ظالـــم له لاسه
په حال زبون د فریدون غوندې شاهان پراتهٔ دي (حافظ)

**فریزر** :- (ف+ري+ز+رْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه]- هغه خاص جوړ شوے صندوق په کوم کښې د ګرمۍ درجه د صفر نه ښکته وي- او د خوراك کوم څیز چې په

کښې کښېښودے شي هغه تر ډېره وخته پورې نهٔ خرابېږي. يخچال- يخ دان.

**فربښته** :- (فَ+ر+ښ/ش+تَ)-[و_____ فرښته]

**فريضه** :- (فَ+رِي+ضَ)-[ع-مو-ج:ضې- فرائض]- هغه کار چې کول ئې په چا فرض وي. د خداے تعالىٰ حکم کوم چې په بنديانو باندې فرض دے لکه کلمه طيبه- نمونځ- روژه- حج- زکوٰة.

**فريضه پوره کول** :- (هغه کار ترسره کول- کوم چې د شريعت له رويه په چا فرض شوے وي.

**خپله فريضه بلل** :- (خپله فرېضه ګڼل- خپل فرض ګڼل.

**فرېفته** :- (فَ+رې+فْ+تَ)-[ف+صف]- (۱) غولېدلے- دوکه شوے. (۲) مئين- عاشق.

**فرېفته کېدل** :- (مئينېدل- عاشق کېدل)- د څهٔ څيز يا کار سره مينه پېدا کېدل.

**فريق** :- (فَ+رِي+قْ)-[ع-اس-مذ-ج:ان]- ډله- ګروه- جماعت- پارټي.

**فريق ثاني** :- (—+ثا+ني)-[عف تر-اس-مذ]- دويم فريق- هغه کس يا کسان په چا باندې چې دعوىٰ شوي وي. مدعا عليه.

**فزا** :- (فَ+زا)-[ف-لاحقه]- فارسي لاحقه ده. نورو الفاظو سره راځي. او د زياتوونکي او ډېروونکي معنې ورکوي.(د افزا بدل شکل دے).

**غم فزا** :- (غَ+مْ+—)-[ف تر-صف)- غم زياتوونکے.

**فزع** :- (فَ+زَ+عْ)-[ع-اس-مو]- ويره- ډار- خوف. عموماً ((جزع)) سره يوځاے راځي.

ځاے په ځاے بلا شي مبتلا په جزع و فزع
چا چې مــــولا هېر کړو د دنيا په لذتونه (حافظ)

**فزکس** :- (فِ+زِ+ک+سْ)-[انګ-اس-مذ]- طبيعيات- هغه علم يا پوهنه چې په کښې د مادي اشياؤ غبږ- تاؤ- رڼا- برق- وغېره او په اجسامو باندې د قوت د اثر او اغېزې په حقله مطالعات کوي.

**فزيالوجسټ** :- (فِ+زْ+يا+لو+جِ+س+ټ)-[انګ-اس-مذ-ج:ان]- د فزيالوجي د علم پوهان- د تشريح د علم پوهان.

**فزيالوجي** :- (فِ+زْ+يا+لو+جي)-[انګ-اس-مو]- د سائينسي علومو يوه څانګه. د اعضاؤ علم- عضويات علم- تشريح الاعضاء- فزيالوژي.

**فزيشن** :- (فِ+زِي+شْ+نْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ان]- (۱) د فزکس ماهر- د طبيعي سائينس عالم.

**فزيک** :- (فِ+زِي+کْ)-[انګ-فر تر-اس-مذ]- (۱) درمل پوهنه- د دارو تصفيه کونه. (۲) د بدن جوړښت- د بدن رغښته.

**فزيک پوه** :- (—+پو+هـ)-[انګ-ب تر-اس-مذ-ج:ان]- هغه کس چې په ((فزيک)) پوهېږي. دورمل پوهـ- د طب د علم پوهان. فزيشن

**فزيکي** :- (فِ+زِي+کي)-[انګ-ز-تر-صف]- (۱) فزيک سره تعلق لرونکے- (۲) د دارو درملو علم سره تعلق لرونکے.

**فزيکي شکل** :- (—+ش+ک+لْ)-[انګ-فر-پ-تر-اس-مذ)- مادي شکل- جسماني صورت- طبيعي شکل.

**فزيکه** :- (فِ+زِ+کَ)-[و_____ فزيک]

**فژاک** :- (فِ+ژا+کْ)-[ف-صف-مذ-مو:ه]- خيرن- خيرن پيرن- ګندهـ. ناولے- چټل.

**فژم** :- (فِ+ژَ+مْ)- د زړهٔ تنګېدنه- د زړهٔ تنګي- ساه ډوبے.

**فژولنده** :- (فَ+ژو+ل+ن+دَ)-[ف-صف]- لمسوونکے- لمسه کوونکے (جنګ وغېره ته)- را پورته کوونکے.

**فساد** :- (فَ+سا+دْ)-[ع-اس-مذ-ج-ونه]- ورانے- شر- جنګ جګړه. بلوه- پسات- پېلات.

**فساد امېز** :- (—+ا+مې+زْ)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه]- د فساد سره ګډ- هغه کار يا خبره چې فساد ترې را ولاړېدے شي.

**فساد انګېز** :- (—+اَ+نْ+ګ+ې+زْ)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه کار يا خبره چې فساد پېدا کوي.

**د فساد جرړه** :- (—+جَ+رْ+ړِ)- هغه سړے يا معامله چې څهٔ فساد ترې پورته شوے وي. د جنګ جګړې اصل بنياد يا وجه.

**د فساد سپرغے** :- (—+س+پَ+رْ+غې)

**د فساد سپېڅکے** :- (—+س+پَ+ڼْ+ړ+کے)- معمولي شان خبره يا اختلاف چې لوے فساد او جنګ جګړه ترې جوړه شي.

**د فساد کنه** :- (—+کَ+نَ)-هغه سړے چې په هر ځاے کښې څهٔ نا څهٔ ورانے او جنګ جګړه پېدا کوي. پساتے.

**فسادات** :- (فَ+سا+دا+تْ)-[ع-اس-ج]- د ((فساد)) جمع ده. [و_____ فساد]

**فسادے** :- (فَ+سَا+دَ+ے)-[ف پ-تر-صف-مذ-ج:ان]- فساد پېدا کوونکے- فساد را ولاړوونکے- مفسد- شرارتي- پساتے.

**فسادۍ** :- (فَ+سا+دَ+ۍ)- د ((فسادے)) تانيث دے.

**فسان** :- (فَ+سا+نْ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]- هغه کاڼے چې توري چړې پرې تېرولے شي. باټ- لويه برجى- (لويه برجو)

**فسانه** :- (فَ+سا+نَ)-[ف-اس-مو-ج:فسانې]- (۱) د ((افسانه)) بدل شکل- قصه- خصوصاً هغه قصه چې د نوي ادب د قاعدو تر لاندې ليکلې شوې وي. (۲) له ځانه جوړه شوې خبره.

**فسټ** :- (فَ+سْ+ټ)-[انګ-اس-عدد]- اولنے- رومبنے- د ټولونه اول يا مخکښې. (ځينې خلک ((فرسټ)) هم وائي).

**فسټ ايډ** :- (—+اي+ډ)-[انګ-تر-اس-مذ]- ابتدايي امداد- اولنے طبي امداد کوم چې (په موقع) چا زخمي له ورکولے شي. لکه: وينه بندول- پټي تړل وغېره.

**فسټ ډويژن** :- (—+ډ+وي+ژ+نْ)-[انګ-تر-اس]- په وېش کښې اوله درجه- د ټولونه غوره درجه.

**فسټ راتلل** :- (په کومه مقابله کښې اول راتلل- د ټولونه غوره يا بره راتلل.

**فسټ کلاس** :- (—+ک+لا+سْ)-[انګ-تر-صف]- د اولې درجې- اعلىٰ د ټولونه ښه يا غوره.

**فسټ نمبر** :- (—+نَ+مْ+بَ+رْ)-[انګ-تر-صف]- اول نمبر- د ټولو نه غوره.

**فسحت** :- (فُ+سْ+حَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- لوے والے- پلن والے.

د سيني فسحت ئې جوړ رود جيحون دے
بې مــلاح پـرې څـوک وېسا کا زما لاله (حافظ)

**فسخ** :- (فَ+سَ+خْ)-[ع-اس-مذ]- بدلول- په بل رنګ کول- منسوخ کول- ماتول.

**فسخ کېدل** :- (۱) اولنے حکم- وينا وغېره. بدلېدل يا منسوخېدل. (۲) رد کېدل- منسوخ کېدل (لکه نکاح- عهدنامه وغېره)

**فسردګي** :- (فَ+سُ+رْ+دَ+ګي)-[ف تر-اس-مو]- د افسردګي بدل شکل- مړاوېدنه. [و_____ افسردګي]

**فسرده** :- (فَ+سُ+رْ+دَ)-[و____ افسرده]

**فسـق** :- (فِ+سْ+ق)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]-(۱) نافرمـاني- حکـم نـهٔ منـنـه سرغړونه. (۲) بدکاري- زنا (کاري)

**فسـق او فجـور** :- (___+اَوْ+فُ+جُـو+رْ)-[غ-پ-تـر-اس-ج]- د دواړو لفظونـو تقریباً یوه معنٰی ده. بدکاري او ناکاره عملونه. زنا کاري او بد چلني.

هومره توان توفیق ئې نهٔ ګنم په بخت کښې
چــې تائب کا مالــه فسقه لـــه فجـوره (رحمان بابا)

**فسوق** :- (فَ+سُو+قْ)-[ع-اس-ج]- بدکاري- بد چلني- زنا کاري.

**فسون** :- (فَ+سُو+نْ)-[ف-اس-مذ]- د ((افسون)) بدل شکل دے.
(۱) جادو- منتر- سحر. (۲) فریب- دوکه.

**فسون ګر** :- (___+ګَ+رْ)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه]- جادو کوونکے جادوګر.

**فسیح** :- (فَ+سِي+حْ)-[ع-صف-مذ]- فراخ- پلن- کشاده.

**فشار** :- (فَ+شا+رْ)-[ف-اس-مذ]- دباؤ- نچوړ- نچوړونه- نچوړي کونه.

**فشارخون** :- (___+خُو+نْ)-[ف تر-اس-مذ]- د وینې دباؤ. (انګ- بلډپریشر)

**فشان** :- (فَ+شا+نْ)-[ف-صف-مذ-مو:ه]- لوستونکے- خوروونکے. (د لاحقې په طور نورو الفاظو سره راځي).

**اتش فشان** :- (آ+ت+شْ+___)-[ف-تر-صف-مذ-مو:ه]-(۱) د اور نوشتونکے- اور خورونکے. (۲) هغه غر یا غرونه چې (کله کله) ډېر لوے اور یا د اور د ویلې شوې ماده بهر په پورته اولي. (۳) هغه سړے چې ډېر تېز او تند تقریر کوي.

**اشک فشان** :- (اَ+شْ+ک+___)-[ف-تر-صف-مذ-مو:ه]- اوښکې تویوونکے- ژړېدونکے- اوښکې بهوونکے.

**فشاني** :- (فَ+شا+نِي)-[ف تر-اس-مو]- نوستنه- خورونه.

**اشک فشاني** :- (اَ+شْ+کْ+___)-[ف تـر-اس-مـو]- اوښـکې نوسـتنه- اوښـکې بهونه یا تویونه- ژړا.

**ګل فشاني** :- (ګُ+لْ+___)-[ف تر-اس-مو]- ګلونه نوستنه- ګلونه یو خوا بـل خوا خورونه. مجازاً ښکلې خبرې (کونه).

**فشرده** :- (فَ+ش+رْ+دَ)-[ف-صف]- نچوړ کړے- نچوړي کړے.

**فصاحت** :- (فَ+صا+ح+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- صفا او صـحیح ژبـه. داسـې کلام یا (لیک) په کوم کښې چې داسې الفاظ او محاورې وغېره استعمال شوې وي- کوم چې پاخهٔ اهل زبان صحیح او فصیح ګڼي. او ګران- د محاورې نه خلاف او پرېوتي (بازاري) الفاظ وغېره پـه کښـې نـهٔ وي استعمال شوي.

**فصاحت او بلاغت** :- (___+او+بَ+لاَ+غ+تْ)-[غ پ-تر-اس-مذ]- په ژبه کښې د هغـو الفاظو استعمال، کوم چې د ژبې د محاورې مطابق وي- پوچ او پرېوتي الفاظ په کښې نهٔ وي- او بیان ئې داسې وي چې اورېدونکے یا لوستونکے پرې په صحیح ډول پوهه شي- خوش بیاني- خوږ ژبتوب.

**فصاد** :- (فَ+صْ+صا+د)-[ع-اس-فا-ج:ان]- د بدن نه وینه راوښکونے جراح- (د پخوانو خلکو د علاج یوه طریقه)

**فصحاء** :- (فُ+صَ+حا)-[ع-اس-ج]- د ((فصیح)) جمع ده. (و___ فصیح). هغه خلک چې ژبه ئې صفا سوتره او سپېځلې وي.

**فصد** :- (فَ+ص+دْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- رګ په نشتر وهنه- چې وینې ترې را وبهېږي.

**فصد بندېدل** :- (په رګ کښې په نشتر وهلے شوے ځاے بند بدل- یعنې وینې بند بدل.

**فصد پرانستل** :- (رګ په نشتر وهل چې وینې ترې را روانې شي- د رګ په نشتر کولو سره وینې راوښکل.

**فصد دقیفال** :- (___+دَ+قي+فا+لْ)-[عف-تر-اس-مذ]- د قیفال (د یو رګ نوم) نه وینه وښکنه.

**فصـل** :- (فَ+ص+ل)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه-فصـول]-(۱) غـنم اوربشـې وغېـره کومې چې د کرلو نه پس په پټي کښې پیدا شي. لکه: دا ځل مې ښه فصل شوے دے. (۲) موسم- لکه د اوړي فصل. (عالم خلک ف په پ بدلوي) او پصل وائي. (۳) د کتاب یوه برخه باب- وړوکے باب- یا د باب یوه حصه.

**فصل حریف** :- (___+حَ+ري+فْ)-[ع-ف-تر-اس-مذ]- د کال په دوو فصلونو کښې هغه فصل چې په ګرمۍ کښې کرلے او په مني کښې رېبلے او اخستے شي. د مني فصل. لکه: جوار- باجره- موټ وغېره.

**فصل ربیع** :- (___+رَ+بِي+عْ)-[عف تر-اس-مذ]- د کال په دوو فصلونو کښې هغه فصل چې د ژمي په سر (په مني کښې) کرلے شي او د اوړي په سر کښې رېبلے شي. د اوړي فصل. لکه غنم- اوربشې- چڼه وغېره.

**فصل ګل** :- (___+ګُ+لْ)-[ف تر-اس-مذ]- د ګلونو فصل- د ګلونو موسم- سپرلے- پسرلے- بهار.

**دفصل مرز** :- (___+مَ+رْ+ز)-مطلب پرسته سړے- چې د مطلب په وخت را پیدا شي.

**فصـل** :- (فَ+ص+لْ)-[ع-اس-ج:ونـه]- جـدا والے- فاصـله- د دوو څیزونـو پـه مینځ کښې فاصله یا وت.

**فصل ورکول** :- (د دوو څیزنو، خصوصاً په لیک کښې د دوو لفظونو په مینځ کښې لږ شان خالي ځاے پرېښودل- فاصله پرېښودل.

**فصلانه** :- (فَ+صْ+لا+نَ)-[ف-اس-مو]- هغه پیداوار یا خاص مقرره پیسې ټکې کوم چې قاضي ملا نوکر له د هر فصل په اخر کښې ورکولے شي.

**فصلي** :- (فَ+صْ+لِي)-[ف تر-صف]- فصل سره تعلق لرونکے. فصل تـه منسوب.

**فصلي تبه** :- (___+ت+بَ)-[ف پ-تر-مو-ج:ې]- هغه تبه کومه چې د فصل د بدلېدو په وخت راځي. موسمي تبه- ملېریا.

**فصلي کال** :- (___+کا+لْ)-[ف تر-اس-مذ]- د فصل سره تعلق لرونکے کال- هغه کال چې د فصلونو په حساب سره شمېرلے شي.

**فصلي ګلاب** :- (___+ګُ+لا+بْ)-[ف تر-اس-جم]- د ګلابو د ګلونو هغه قسم کوم چې د چېتر په میاشت کښې ګلونه کوي او خوشبویه وي. ددې نه عطر وښکلے شي. سوچه ګلاب.

**فصول** :- (فُ+صُو+لْ)-[ع-اس-ج]- د ((فصل)) جمع ده. (و____ فصل).

**فصیح** :- (فَ+صِي+حْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]- د فصاحت د اصولو مطابق خبرې یا لیک کوونکے. (و____ فصاحت). خوش بیانه خوش کلامه- خوږ ژبے.

راحت نهٔ دے بې زحمته چا موندلے
دا خبـــره په قرآن کښې ده فصیحه (خواجه محمد)

**فصیح او بلیغ** :- (___+اَو+بَ+لي+غْ)-[ع-پ-تر-صف]- هغه کلام خبرې یا لیک کوم چې د فصاحت او د بلاغت د قاعدو او د اصولو مطابق وي.

**فصیح اللسان** :- (___+ح+لْ+ل+سا+نْ)-[ع تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه کس چې ژبه ئې فصیحه وي. خوږ ژبے- خوږ کلامه. فصیح زبانه.

**فصیح زبان** :- (___+زَ+با+نْ)-[ف تر-صف-مذ-مو:ه]- هغه کس چې ژبه ئې

فصيحه وي. خوږ ژبے- هغه کس چې په خبرو کښې ئې فصاحت وي.

**فصيل** :- (فَ+صي+لْ)-[ع-مذ-ج:ونه]- لوے دېوال- خصوصاً هغه لوړ او پلن دېوال کوم چې د يو ښهر يا د قلا نه چاپېره جوړ شوے وي.

**فضاء** :- (فَ+ضا)-[ع-اس-مو-ج:گانې]- ارت بېرت مېدان. فراخه زمکه. (۲) د زمکې نه بره پورته هغه خالي ځاے چې بغېر د هوا نه نور پکښې هېڅ نه وي. دا لفظ د «ف» زور سره فصيح گڼلے شي.

**فضاء بېړی** :- (ـــ+بې+ړَی)-[اس-مذ]- د هوا بېړی- په هوا کښې تلونکے بالون- بېلون.

**فضاء پيما** :- (ـــ+پې+ما)-[عف تر-اس-مذ]- هغه اله چې د فضا کچ پرې کولے شي.

**فضاء نورد** :- (ـــ+نَ+وَ+ر+د)-[ع-ف-تر-صف-مذ-ج:ان]-(مو:ه]- په فضا کښې الوتونکے- په فضايي پېړی کښې بره په فضا کښې الوت يا سفر کوونکے. په فضا کښې الوتونکے په فضايي پېړی کښې بره په فضا کښې الوت يا سفر کوونکے

**فضاء هوارول** :- (مجازاً حالات سمول- د کوم کار دپاره حالات درستول او موزون کول.

**خارجي فضاء** :- (خا+ر+جي+ـــ)- د بهر فضا- پورته فضا- باندېنۍ فضا- لکه: خارجي فضا ته الوتنه.

**فضائل** :- (فَ+ضا+ئِ+لْ)-[ع-اس-ج]- د «فضيلت» جمع ده.

**فضائي** :- (فَ+ضا+يي)-[ف تر-صف]- فضا سره تعلق لرونکے. فضا ته منسوب.

**فضائي بېړی** :- (ـــ +بې+ړَی)-[ف-پ-تر-اس-مو]- هوائي ډاك.

**فضائيه** :- (فَ+ضا+ئي+يَ)- د ملك د جنگي هوائي جهازونه بېړه.

**فضل** :- (ف+ض+لْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) مهرباني- عنايت. لطف کرم. (۲) ورکړه- بخښنه. (۳) علم- بزرگي- دانش. (۴) د نارينه ؤ او د زنانه ؤ په نومونو کښې استعمالېږي.

**فضل فروشي** :- (ـــ+فُ+رو+شي)-(۱) د علم نمائش کونه- د خپل علم په حقله لويي کول. (۲) فالتو څيزونه خرڅونه.

**فضل کول** :- (مهرباني کول- لطف و کرم کول. (د خداے پاك په حقله استعمالېږي)

**په فضل د خداے** :- (د خداے پاك مهربانۍ سره- د خداے پاك په امداد سره.

**صاحب فضل** :- (صا+ح+ب+ـــ)- د فضل خاوند- فضيلت لرونکے. د خوبيو څښتن.

**فضله** :- (فُ+ضْ+لَ)-[ع-اس-مو-ج:لې-لات]- (۱) پاتې شوے يا فالتو شوے څيز- (۲) غُل- سوټې وغېره گندگي.

**فضول** :- (فُ+ضو+لْ)-[ع-صف]- (۱) بې فائدې- عبث- بېهوده. (۲) بېکاره- خوشې.

چې ئے لاهې هر سړے کا
عشق اسان نۀ دے فضولو (خوشحال)

**فضول خرچ** :- (ـــ +خ+ر+س)-[ع-پ-تر-اس-مذ-ج:ونه]- بې فائدې خرڅ- بې ځايه پېسې تېکې لگول.

**فضول خرچه** :- (ـــ +خَ+رْ+چَ)-[ع-پ-تر-صف]- فضول خرڅ کوونکے بې ځايه پېسې تېکې لگوونکے- بې ځايه مال لگوونکے.

**فضوله** :- (فُ+ضُو+لَ)-[ع-پ-تر-صف-مو-ج:لې]- عبث- بې فائدې خوشې.

**فضولي** :- (فُ+ضُو+لي)- (۱) دخل ورکول- دخل- معقولات. بې فائدې غږېدل. (۲) بې فائدې خبرې کول. (۳) شرارت کول- ورانے کول يا اچول.

**فضولې** :- (فُ+ضُو+لې)-(۱) د «فضوله» جمع ده. (۲) د «فضوله» اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دے.

**فضيحت** :- (فَ+ضي+حَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) بې عزتي. ذلت سپکاوے. (۲) بدنامي- رسوائي- مختوري.

**فضيحت امېز** :- (ـــ +ا+مې+زْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- (۱) هغه کار يا خبره چې بې عزتي او سپکاوے پکښې گډوي. (۲) د بې شرمۍ- د بې حيايۍ، بې عزتۍ راوستونکے کار يا خبره.

**فضيحت کول** :- (۱) د بې شرمۍ کار کول- داسې کار کول چې سړے بې عزته شي. (۲) بې عزته کول- حيا اخستل.

په دا سپينه ږيره ما فضيحت مه کړه
کۀ په تـوره ږيره هرڅومره بزگار يم (خوشحال)

**فضيلت** :- (فَ+ضي+لَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج-ونه]- فضل- بزرگي- لويي- زياتوالے- فوقيت.

**فضيلت لرل** :- (فوقيت لرل- غوره والے لرل.

**فضيلت ماب** :- (ـــ +مَ+آ+ب)-[ع-تر-صف-مذ-مو-ه]- د عزت يو لقب دے- د فضيلت خاوند- فضيلت لرونکے- د فضيلت ځاے.

**فضيلت ورکول** :- (غوره کول- غوره گڼل- فوقيت ورکول- بهتره گڼل.

**فضيلت وړل** :- (سبقت وړل- فوقيت موندل- غوره والے تر لاسه کول.

**د فضيلت دستار – پټکے** :- (ـــ +دَ+سْ+تا+رْ)- په علم کښې فاضل کېدل- د يو مکتب يا دار العلوم نه فارغ کېدل.
دا يو دستور دے چې کوم طالب د مکتب يا د دار العلوم ټولې درجې پاس کړي- نو بيا د هغه په سر د فاضل کېدو د علامت په ډول پټکے تړلے کېږي.

**فضيلتونه** :- (فَ+ضي+لَ+تُو+نَ)-[ع-پ-اس-ج]- د فضيلت جمع ده.

**فطانت** :- (فَ+طا+نَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-زېرکي- هوښيارتيا. زيرکتوب- فراست- عقلمندي.

**فطر** :- (ف+طَ+رْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) روژه ماتونه. (۲) وړوکے اختر.

**د فطر عيد** :- (ـــ +ع+ي+دْ)-[ع-پ-اس-مذ]- وړوکے اختر- کوچنے عيد.

**فطرانه–فطره** :- (ف+طْ+رانَ)-[عف تر-اس-مذ]- هغه خېرات چې د وړوکي اختر په ورځ غريبانانو له ورکولے شي. سرسايه- د فطر صدقه.

**فطرت** :- (ف+طْ+رَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- قدرت- پېدا ونښت- پېدائش- خمير- خَټه- خلقت.

**فطرتاً** :- (ف+طْ+رَ+تَ+نْ)-[ع-تف]- د فطرت مطابق- د خټې يا د ضمير مطابق- قدرتي طور سره.

**فطرتي** :- (ف+طْ+رْ+تي)-[غ-پ-تر-صف]- و ـــــ فطري. (۲) شرارتي- چالاك- فتنه پرداز.

**فطري** :- (ف+طْ+ري)-[ع-پ-تر-صف]- د فطرت مطابق- د پېدائشي عادت مطابق- د خټې يا خمير مطابق- جبلي- خلقي- طبعي.

**فطيره** :- (فَ+طي+رَ)-[ع-پ-تر-صف-مو]- (۱) هغه اوړه چې تازه اغږلې شوې وي او خميره شوې نۀ وي- پتيره. (۲) هغه ډوډۍ چې د پتيره اوړو نه پخه شوې وي. (پښتو کښې عموماً پتيره وائي)

**فعال** :- (فَ+عْ+عا+لْ)-[ع-صف]- کارکوونکے- په کار کښې بوخت. متحرك.

**فعالانه** :- (فَ+عْ+عا+لا+نَ)-[عف تر-تف] - عملاً - عملي طور سره.

**فعاليت** :- (فَ+عْ+عا+لي+ىَ+تْ)-[فف-تر-صف] - (۱) د فعل يا كار كولو كيفيت. (۲) مهارت - چستي. چالاكي - سرگرمي.

**فعاليت كول** :- (تكړه والے ښكاره كول. پياوړتوب كول.

**په فعاليت راتلل** :- (په مړتتوب راتلل - په سخت كار يا محنت كښې راوستل.

**په فعاليت كښې اچول** :- (په سخت كار يا محنت كښې اچول.

**فعل** :- (فِ+عْ+ل)-[ع-اس-مذ-ج:ونه] - (۱) كار - (۲) (گرېمر) هغه كلمه چې په كښې د كوم كار د كولو يا د نهٔ كولو مفهوم موندے شي. (۳) زنا - بدكاري.

**د حال فعل** :- (دَ+حا+ل+ــــ)-[اس-مذ] - هغه فعل (كار) كوم چې په موجوده زمانه يا روان وخت كښې كولے شي. لكه هغه راځي.

**فعل شنيع** :- (ــــ +شَ+نِي+ع)-[عف تر-اس-مذ] - بدكار - زنا - جواري

**فعل قبيح** :- (ــــ قَ+بِي+حْ)-[عف تر-است-مذ] - بدكار - هغه كار چې قباحت لري.

**د ماضي فعل** :- (دَ+ما+ضِي+ــــ)-[اس-مذ] - (گريمر): هغه فعل (كار) چې د كوم تعلق تېرې زمانې سره وي. لكه: هغه راغلے وۀ.

**فعل متعدي** :- (ــــ +مُ+ت+عَ+دْ+دي)-[اس-مذ] - (گريمر) هغه فعل چې په جمله كښې د فاعل نه علاوه مفعول هم غواړي. لكه: هغۀ خط وليكه.

**فعل مجهول** :- (ــــ +مَ+جْ+هُو+ل)-[اس-مذ] - (گريمر): هغه فعل چې فاعل ئې معلوم نه وي. لكه: هغه ووژلے شۀ.

**فعل مستقبل** :- (ــــ +م+سْ+تَ+قْ+ب+لْ)-[اس-مذ] - (گريمر): هغه فعل (كار) د كوم تعلق چې د راتلونكې زمانې سره وي. لكه: هغه به نۀ راځي.

**فعل معروف** :- (ــــ +مَ+عْ+رُو+فْ)-[اس-مذ] - (گريمر) هغه فعل چې فاعل ئې معلوم وي. لكه: فلاني فلانے وواژۀ.

**فعل ناقص** :- (ــــ +نا+قِ+صْ) - هغه فعل كوم چې بغېر د بل لفظ د لگولو نه پوره معنىٰ نۀ وركوي.

**فعل سماعي** :- (ــــ +سَ+ما+عِي)-[عف تر-اس-مذ] - هغه فعل چې بې قاعده وي - په روايتي قاعدو جوړ شوے فعل. (د قياسي فعل په مقابله كښې)

**فعل قياسي** :- (ــــ +قِ+يا+سِي)-[عف-تر-اس-مذ] - هغه فعل چې د قياس مطابق وي. عام فعل (په مقابل كښې د سماعي فعل)

**فعلاً** :- (فِ+عْ+ل+نْ)-[ع-تف] - (۱) عملاً. عملي طور سره. (۲) په عمل كښې راغلے - حقيقةً - په حقيقت كښې.

**فعلاً او قولاً** :- (ــــ +اَوْ+قَو+لَ+نْ)-[ع-پ-تر-تف] - عمل سره او قول سره د عمل په طور او د قول (وينا) په طور.

**فعلي** :- (فِ+عْ+لِي)-[عف تر-صف] - فعل سره تعلق لرونكے - فعل ته منسوب. لكه: فعلي ضميرونه.

**فعليه** :- (فِ+عْ+لي+ىَ)-[ع-صف] - هغه چې فعل سره تعلق لري يا فعل ته منسوب وي. لكه: جملهٔ فعليه يا فعليه جمله.

**فغان** :- (فِ+غا+نْ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه] - (۱) شور فرياد - ژړا انگولا (۲) شور زوږ - چغار. (د ((ف)) پېښې سره فصيح دے)

**فغان كول** :- (شور زوږ كول - چغار كول.

كه بلبلې كه طوطيان دي

لــور په لور كاندې فغان (خ خ خ)

**فغفور** :- (فَ+غْ+فُو+رْ)-[اس-مذ-ج:ان] - د چين د پخواني بادشاهانو لقب.

معشـــوقــې وته بادشاه لكه بنده شي

كه قېصر دے كه خاقان دے كه فغفور (خوشحال)

(اصلاً دا لفظ د فغ او فور يا د فع او پور نه جوړ شوے دے. د فغ معنى بت ده. او پور يا فور معنىٰ زوے ده يعنې د بت زوے)

**ففتهـ كالم** :- (ف+فْ+ت+كا+ل+مْ)-[انگ-اس-مذ] - د يو ملك هغه غدار خلك - كوم چې په خپل ملك كښې اوسي - خو ساز باز ئې دښمن ملكونو سره وي. او د خپل ملك پټ رازونه هغوي ته رسوي.

**فقاره** :- (فَ+قا+رَ)-[ع-اس-مو-ج:ې] - د ملا د تير يوه مهره يا بند.

**فقاريه** :- (فَ+قا+ري+ىَ)-[غ-صف] - فقارواله - هغه چې فقار سره تعلق لري.

**فقاريه حيوانات** :- (ــــ +حَ+وا+نا+تْ) - هغه حيوانات چې د ملا د تير هډوكے لري.

**فقاهت** :- (ف+قا+هَ+تْ)-[ع-اس] - (۱) عقلمندي - پوهه. (۲) دين د علم پوهه.

**فقدان** :- (فُ+قْ+دا+نْ)-[ع-اس-مذ] - (۱) غېر موجودگي - نيشتيا - عدم - (۲) وركونه - وركېدنه.

**فقر** :- (فَ+ق+رْ)-[ع-اس-مذ] - فقيري - درويشي - نيشتيا - محتاجي - غريبي.

**فقر الدم** :- (ــــ +(ر+دْ)+دَ+مْ)-[ع تر-اس-مذ] - د يو مرض نوم دے چې په بدن كښې د وينې كمښت راشي - كم خوني. انگ-امينيا.

**فقر غوښتل** :- (۱) فقيري غوښتل - غريبي خواري غوښتل. (۲) د فقيرانو په شان - بې نيازي غوښتل - استغنا غوښتل.

**فقر نامه** :- (ــــ +نا+مَ)-[و_____ فقير نامه]

**فقراء** :- (فُ+قَ+را)-[ع-اس-ج] - د ((فقير)) جمع - فقيران.

**فقرات** :- (فِ+قْ+را+تْ) - د ((فقره)) جمع ده.

**فقره** :- (فِ+قْ+رَ)-[ع-اس-مو-ج:رې] - (۱) جمله - د داسې الفاظو مجموعه چې د كوم كار كول يا كېدل ترې څرگندېږي - په دې كښې كم نه كم يو فعل او يو فاعل ضرور وي. (۲) د ملا د تير يو بند يا هډوكے.

**فقره جوړول** :- (يو وركړے شوے لفظ په صحيح ډول په جمله كښې استعمالول.

**فقط** :- (ف+قَ+طْ)-[ع-صف] - (۱) صرف - محض - بس. لكه: فقط سل روپۍ مې پكار دي. (۲) تش - يوازې. لكه: فقط زۀ هلته تلے يم. (۳) ختم - ختم شۀ. د خط يا د مضمون په اخر كښې ليكلے شي مطلب ئې دا وي چې خط يا مضمون دلته ختم شۀ.

**فقه** :- (فِ+قَ+هْ)-[ع-اس-مو-ج:فقې] - (۱) مذهبي قانون - هغه قوانين كوم چې يو مذهب تسليم كړي دي. (۲) هوښيارتيا - زيركي - عقل پوهه. (۳) د دين او شريعت علم.

**فقه اللغت** :- (ــــ+هَ+لْ)+لُ+لَ+تَ)-[غ-تر-اس-مذ] - د الفاظو علم - ژب پوهنه - (انگ: فلالوجي)

**فقهاء** :- (فُ+قَ+ها)-[ع-اس-ج] - د ((فقيه)) جمع ده. پوهان - دانايان - هوښيار - عقلمند.

**فقهي** :- (فِ+قَ+هِي)-[عف تر-صف] - فقې سره متعلق. لكه د فقهې مسئلې.

**فقيد** :- (فَ+قِي+دْ)-[ع-صف] - (۱) ورك شوے - ورك - غېر موجود. مړ (شوے). (۲) كم ياب - نا ياب.

**فقيد المثال** :- (ــــ +دُ+لْ+مِ+ثا+لْ)-[ع تر-صف-مذ-مو:ه] - هغه چې مثال ئې نۀ شي موندے - بې مثاله - بې مثله - بې نظيره.

**فقید النظیر** :- (ـــــ+دُ+لْ+نَ+ظِي+رْ)-[ع -تر -صف-مذ -مو:ه]- هغه چې نظیر نه لري- بې نظیره- بې مثاله- بې مثله.

**فقیر** :- (فَ+قي+رْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو):ه]- (۱) خېرمار- خېر غوښتونکی- سوالگر- گدا. (۲) غریب- عاجز- ملفس خوار- نېستگار. (۳) د نارینهؤ په نومونو کښې استعمالېږي. (۴) د عاجزۍ او خاکسارۍ په ډول په خطونو وغېره کښې خپل نوم سره لیکلې شي. (عام خلک د ف په ځای پ یعني ((پقیر)) وائي.

**فقیرانه** :- (فَ+قي+را+نَ)-[عف تر-تف]- د فقیرانو په شان- دروېشانه- د گداگر په شان. د غریبو خلکو یا د مفلس سړي په شان عاجزانه.

**فقیرانه ژوند** :- (ـــ +ژْ+وَ+نْ+د)-[ف-پ-تر-اس-مذ]- د فقیرانو په شان ژوند - د عاجزانو په شان اوسېدنه- دروېشانه ژوندون.

**فقیرانه صورت** :- (ـــ +صُو+رَ+تْ)-[عف تر-اس-مذ]- د فقیرانو په شان شکل و صورت- د دروېشانو په شان کړۀ وړۀ.

**فقیرانه مزاج** :- (ـــ +مِ+زا+جْ)-[عف تر-اس-مذ]- د فقیرانو په شان طبیعت. د دروېشانو په شان خوي خصلت.

**فقیرنامه** :- (فَ+قي+ر+نا+مَ)-[اس-ج-مو]- د پښتنو په لویو قبیلو لکه یوسف زي وغېره کښې ځینې خلک داسې شامل دي چې هغه نسلاً دغې لوئې قبیلې څخه نۀ دي. خو هغوی سره اوسي. لکه: گوجر- موچیان- ډمان- سقه گان- او داسې نور- داسې خلکو ته په جمع ((فقیرنامه)) وائي.

**فقیره** :- (فَ+قي+رَ)-[ف-پ-تر-اس-مو-ج:رانې-رې]- (۱) د ((فقیر)) تانیث دے. (۲) د ((فقیر)) مجروري وغېره (بدل) شکل دے.

**فقیري** :- (فَ+قي+ري)-[ع-پ-تر-اس-مو]- (۱) سوالگري- خېرماري گدایي- پقیري. (۲) عاجزي- خواري- نیستي- مفلسي.

**فقیه** :- (فَ+قي+هْ)-[ع-اس-مذ-ج:فقیهان-فقها]- (۱) هوښیار- دانا پوهه- عقلمند. (۲) د فقهې د علم عالم- د فقهې پوهان. (۳) اسلامي قانون دان.

**فک** :- (ف+ك)-[ع-اس-مذ]- (۱) پرانستل- خلاصول- (۲) جامنه- د خولې ژامنه.

**فک الرهن** :- (ـــ+ك+رْ+ر+هـ+نْ)-[ع-تر-اس-مذ]- رهن کړے شیز را خلاصونه.

**فکاهت** :- (فُ+کا+هَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- خوش طبعي. ټوکې ټکالې- خوش دلي.

**فکاهي** :- (فُ+کا+هي)-[اس-مذ]- مزاقیه- د ټوکو وشتو- خندوونکے لکه: فکاهي- جلې.

**په فکاهي ډول** :- (د ټوکو په ډول- د مذاق په ډول.

**فکر** :- (ف+كَ+رْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) سوچ- خیال- غور- حېرت انډېښنه. (۲) پام- توجه- (بعضې ف-پ بدلوي یعنې (پکر) وائي.

**فکر اخېستل** :- (حېرت وهل- حېرانېدل-لکه: څۀ فکر اخستے ئې؟

**فکر ته راتلل** :- په فکر کښې راتلل- په پوهه کښې راتلل.

**فکر د معاش** :- (ـــدَ+مَ+عا+ش)- د روزۍ د گټلو فکر- د روزۍ د پېدا کولو غم.

**فکر رسېدل** :- (۱) پوهه رسېدل- عقل رسېدل- په کوم کار یا معامله پوهېدل- (۲) حل یا علاج ور معلومېدل.

**فکر زغلول** :- (سوچ کول- یا غم کول- خیال کول- توجه کول- احتیاط کول.

**فکر کښې راتلل** :- (یادېدل- په یادو کښې راتلل- را په یاد کېدل.

**فکر کول** :- (۱) سوچ کول- رے وهل- حېرت وهل- (۲) خیال کول پام (فهم) کول- توجه کول-(۳) احتیاط کول.

**فکر لاحق کېدل** :- (اندېښنه پېدا کېدل- غم پېدا کېدل- د کوم کار په حقله اندېښنه یا غم پېدا کېدل- سودا کېدل.

**فکر لرل** :- (فکر کول- سوچ کول- خیال ساتل- پام لرل.

**فکر مند** :- (ـــ +مَ+نْ+د)-[ع-پ-تر-صف-مذ-مو:ه]- په فکر کښې بوخت- غمجن- په سوچ کښې ډُوب.

**فکر مندي** :- (ـــمَ+نْ+دي)-[ع-ف-تر-اس-مذ]- فکر کونه- فکر- سوچ- اندېښنه.

**فکر مندي ښکاره کول** :- (غم ښکاره کول- تردد- اندېښنه ښکاره کول د کومې خبرې یا معاملې په حقله د زړۀ ناقلارې څرگندول.

**فکر وړل** :- (اندېښنه کول- غم کول. په فکر کښې (بودل)- متفکر (بودل) لکه: زۀ دې فکر وړے یم چې.........

**ابتکاري فکر** :- (ا+بْ+تَ+کا+ري+ـــ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]- نوے فکر- هغه فکر یا خیال وغېره چې ورومبے د چا په پوهه کښې نۀ وي راغلے.

**په فکر سره** :- (احتیاط سره.

**په فکر کښې راتلل** :- (۱) په یادېدل- ور په یادېدل- (۲) فکر ورسېدل در پوهېدل.

**د فکر په ټال زنگېدل** :- (وـــــ د فکر ټال وهل). په سوچ کښې تلل.

**د فکر ټال وهل** :- (فکر زغلول- د فکر نیلے زغلول. چرت وهل- هر طرف ته سوچ کول.

**د فکر سلسله پرېکول** :- (توجه بل خواته اړول.

**فکر غېر** :- (غې+رْ+ــــ)-[ع-پ-تر-اس-مذ-ج:ونه]- د الله پاك نه علاوه نور فکرونه- د غېر الله خیال.

غېر فکـــر مې جارو کړه له خاطره
اسلام دین مې په مدد سره اباد کړۀ (خواجه محمد)

**فکرونه** :- (ف+كْ+رُو+نَ)-[اس-ج]- د فکر جمع ده. ډېر سوچونه. غمونه. پېښې- مسئلې (چې حل کول غواړي)

**فکري** :- (ف+كْ+ري)-[عف تر-صف]- فکر سره- فکر کوونکے.

**فکري ارتقاء** :- (ـــ +ا+رْ+ت+قا)- د فکر سوچ او د پوهې ترقي.

**فکري جریان** :- (ـــ +ج+رْ+یا+نْ)-[ع-پ-تر-اس-مذ]- د فکر تگ- د فکریون. د فکر په حرکت او په عمل کښې پاتې کېدنه.

**فکري وحدت** :- (ـــو+حْ+دَ+تْ)- د سوچ یو والے- د ټول قوم اولس وغېره یو شان سوچ کول- په خپل سوچ کښې متحد بودل.

**فکریات** :- (ف+ك+ر+یا+تْ)-[ع-اس-ج]- نظریه- د نظریاتو پوهه. علم التفکیر.

**فکشن** :- (ف+ك+ش+ن)-[انگ-اس-مذ]- خیالي قصه- افسانه.

**فگار** :- (ف+گا+رْ)-[ف-صف-مذ-مو:ه]- زخمي- ژوبل- جوبل. پرهار ژلے- پرهار جلے (پراورژلے). (عموماً د لاحقې په طور نورو الفاظو سره راځي.

**فگاري** :- (ف+گا+ري)-[ف تر-لاحقه]- د فارسۍ لاحقه ده- نورو الفاظو نه وروستو راځي- د زخمي- ژوبل معنٰی ورکوي. لکه: سینه فگاري وغېره.

**فِل** :- (ف+لْ)-[انگ -اس]- د فلالوجي مخفف دے. عموماً تعلیمي ډگرو کښې استعمالېږي. یعنې ایم- فِل.

**فلات** :- (فَ+لا+تْ)-[ف-اس-مذ] - صحرا - بیابان- هغه دشته چېرته چې اوبهٔ او شینکے هېڅ نهٔ وي.

**فلاح** :- (فَ+لا+حْ)-[ع-اس-مذ] - (۱) خلاصے - نجات. (۲) نیکي- ښېګړه- فایده.

**فلاح غوښتل** :- (نجات غوښتل- خلاصول غوښتل.

لاړ د صلاح واخله که فلاح غواړې حافظه
ځي به دوزخ ته مفسدان باخته بختونه

**فلاحت** :- (فَ+لا+ح+ت)-[ع-اس-مذ-ج:ونه] - کرکرونده- زمکه کرل- کاشتکاري.

**فلاحتي** :- (فَ+لا+حَ+تِي)-[عف تر-صف] - زراعت سره تعلق لرونکے. د کرکروندې متعلق.

**فلاحي** :- (فَ+لا+حي)-[عف تر-اس-مو] - فلاحي سره تعلق لرونکے. د کامیابۍ- نجات- خلاصي متعلق.

**فلاحن** :- (فَ+لا+حِ+نْ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه] - مچغنه- مچوغنه.

**فلاډلفیا** :- (ف+لا+ډَ+لْ+ف+یا)-[اس-مع] - د امریکې څلورم لوے ښار د امریکې اَئین په دې ښار کښې جوړ شوے وهٔ.

**فلاسفر** :- (فَ+لا+س+فَ+رْ)-[انګ-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو):ه] - دانشمند- فیلسوف- فلسفي.

**فلاسفه** :- (فَ+لا+سَ+فَ)-[ع-اس-ج] - د فیلسوف یا د ((فلسفي)) جمع ده.

**فلاسفي** :- (ف+لا+س+فِي)-[انګ- اس-مو] - فلسفه- د حکمت علم.

**فلاش** :- (فَ+لا+ش)-[انګ-اس-مذ] - د تاش یو قسم لوبه چې د یو رنګ پتې چاله ورشي یا برابرې کړي نو هغه اوګټي. (په دې لوبه کښې جواري هم کېږي)

**فلاطون** :- (فَ+لا+طُو+نْ)-[و_____ افلاطون]

**فلاکت** :- (فَ+لا+کَ+تْ)-[اس-مذ-ج-ونه] - مجازاً مفلسي- غریبي- خواري- نېستکاري. (دا لفظ د عربۍ د (فلك) نه جوړ کړے شوے دے او اصل معنٰی ئې د اسمان دهنه ده).

فلاکت د شاعرۍ سره مل دے
که شاعر سړے لري جاه و جلال (خوشحال)

**فلاکت زده** :- (___+زَ+دَ)-[و_____ فلاکت وهلے]

**فلاکت وهلے** :- (___+وَ+هـ+لے)-[عپ تر-اس-مف-مذ-ج:لي] - اسمان وهلے- مفلس- غریب- نېستکار- په بده ورځ- په بد حال.

**په فلاکت اخته کېدل** :- (غریب کېدل- خوارېدل- تنګسیاراتلل.

**فلاکس** :- (ف+لا+ک+س)-[انګ-اس-مذ] - د یو بوټي او د دغې بوټي ګل.

**فلالوجسټ** :- (فِ+لا+لو+جِ+سْ+ټ)-[انګ-اس-مذ-ج:ان] - د فلالوجي د علم پوهان- د ژبپوهنې پوهان. ژبپوهان.

**فلالوجي** :- (فِ+لا+لو+جي)-[انګ-اس-مو] - د لغت علم- فقه اللغة- ژبپوهنه.

**فلالوجیک** :- (فِ+لا+لو+جي+كْ)-[انګ-صف] - فلالوجي سره متعلق. د ژبپوهنې سره تړلے.

**فلالین** :- (ف+لا+لي+نْ)-[انګ-اس-مذ] - یو قسم سپږ سین ټوکے چې ډېر پوست او ګرم وي.

**فلان** :- (فَ+لا+نْ)-[ف-اس-مذ-مو:فلانۍ] - یو مجهول لفظ دے- هر کله چې څوك د چا نوم نهٔ اخلي- نو د هغهٔ د نوم په ځاے د ((فلان)) لفظ استعمالوي.(په پښتو کښې د (ف) زور سره ویلے شي بلکې عموماً دا ف هم په پ بدلولے شي).

**فلانکۍ** :- (فَ+لا+نْ+کَ+ۍ)-[ف-پ-تر-مو] - د ((فلانکے)) تانیث دے. پلانکۍ.

**فلانکے** :- (فَ+لا+نْ+کے)-[ف پ-تر-اس-مذ-ج:کي] - د ((فلان)) تصغیر دے. پلانکے.

**فلانکے ډینګلے** :- (___+ډي+ن+ګ+لَے)-[اس-مذ-مو:فلانکۍ ډینګلۍ] - ډینګلے هم مهمل غوندې لفظ دے. مطلب د دواړو لفظونو یو دے. چې د چا د نومونو په ځاے استعمالېږي- خو په دې کښې ددغو کسانو په حقله د حقارت –کرکې او طنز مفهوم هم شامل دے.

**فلانے** :- (ف+لا+نے)-[ف-پ-تر-اس-مذ-مو:نۍ]د ((فلان)) بدل شکل دے- پلانے.

**فلائټ** :- (ف+لا+ئ+ټ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه] - الوت- پرواز- خصوصاً د هوائي جهازونو الوتنه.

**فلائت لفټیننټ** :- (___+ل+فْ+ټي+ن+ن+ټ)-[انګ-تر-اس-مذ-ج:ان] په هوائي فوځ کښې د افسرانو یوه عهده.

**فلپائن** :- (ف+لْ+پا+ئي+نْ)-[اس-مع] - د سهېلي نمبر ختیځې ایشیا په جزیرو کښې د یوې جزیرې نوم- کیوزون ښهر ئې دارالحکومت دے.

**فلپین** :- (فِ+ل+پي+نْ)-[و____ فلپائن]

**فلپینۍ** :- (ف+ل+بي+نَ+ۍ)- د فلپینے تانیث دے. د فلپین د ملك ښځه.

**فلپینے** :- (ف+لْ+پي+نے)-[اس-مع] - د فلپین یا د فلپائن د جزیرې اوسېدونکے.

**فلټر** :- (ف+لْ+ټ+رْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه] - هغه اله چې اوبهٔ وغېره پکښې د صفا کولو دپاره چاڼ کولے شي. چاڼ

**فلز** :- (فِ+لِ+زْ)-[ع-اس-مذ] - دا (دهات) لکه اوسپنه. تانبه- سپین زر.

**فلز سازي** :- (___+سا+زي)-[عف-تر-اس-مو] - د دهاتو جوړونه. د داتونو کاریګري.

**فلزي** :- (فِ+لِ+لْ+زي)-[عف تر-صف] - فلز (دات) سره تعلق لرونکے. دات (فلز) ته منسوب.

**فلزي سکې** :- (___+سِ+ك+کې)-[ف-پ-تر-اس-ج] - هغه پیسې ټکې کوم چې د دات (فلز) لکه سپین زر، سرهٔ زر یا تانبې وغېره نه جوړې شوې وي.

**فلسطین** :- (ف+لَ+سْ+طي+نْ)-[اس-مع] - د مغربي ایشیا مشهور ملك- دا هغه ملك دے چې هر کله بني اسرائیل د مصر نه را ووتل نو څلوېښت کاله لغړېدلو نه پس دې ملك ته راغلل. دلته ئې خپله بادشاهي جوړه کړه. بیا دا ملك په دوو برخو کښې تقسیم شهٔ. د لاندینۍ برخې دارالحکومت یروشلم شو. چې مسلمانان ورته بیت المقدس وائي. بیا روستو اسرائیل نه داملك واخستے شهٔ او د روم عیسایانو په قبضه کښې راغے چې اسلام راغے نو د حضرت عمرؓ په وخت کښې دا ټول ملك مسلمانانو فتح کړ. او تر پېړو پېړو ئې په دې ملك حکومت وکړو.

د دویم جنګ عظیم نه پس پېرنګیانو امریکې او ځینو نورو ملکونو سازش اوکړو او دا ملك ئې یهودیانو له ورکړو. دوي دغلته د اسرائیل په نوم خپله بادشاهي جوړه کړه. مسلمانان د دې مقدسې زمکې د بېرته اخستلو ته ملا تړلې ده خو امریکه او نور ملکونه ئې په شا ولاړ دي. او کامیابېدو ته ئې نهٔ پرېږدي.

**فلسفه** :- (فَ+لْ+سَ+فَ)-[ع-اس-مو-ج:ې] - فلاسفې- د حکمت علم. د موجوداتو علم.

**فلسفي** :- (فَ+لْ+سَ+في)-[ع-اس-مذ-ج:ان]- د فلسفې د علم ماهر. فلاسفر-فېلسوف.

**فلسفيانه** :- (فَ+لْ+سَ+فِي+يا+نَ)-[عف-تر-صف]- فلسفې سره متعلق- د فلسفې حکيمانه- دانشمندانه.

**فلسفيانه خبرې** :- (ـــ+خَ+ب+رې)-[ع-پ-تر-اس-ج]- (۱) د فلسفې په حقله خبرې. د فلسفې خبرې- علمي خبرې. (۲) داسې خبرې کومې چې د فلسفيانو په شان وي- عاقلانه او د دانايانو هسې خبرې.

**فلس کېپ** :- (ف+لْ+سْ+کَي+پ)-[انګ-تر-اس-مذ]- د يو خاص سائز (اوږدوالي او پلنوالي) کاغذ (عموماً ۱۳ انچه x ۱۴ يا ۱۷ انچه). (اصلاً دا لفظ فولزکېپ يعنې د کم عقل ټوپۍ- د پيرنګيانو په ملك کښې به پخوا د مدرسې کوم هلك له سزا ورکړے کېده هغۀ ته به ئې د کاغذ اوږده ټوپۍ په سر کړه. نورو هلکانو به ور پورې خاندل- وروستو د دغې سائز کاغذ ته د کوم نه چې به ټوپۍ جوړولې شوه فولزکېپ وے- چې وروستو بيا فلس کېپ ترې جوړ شۀ. د نورو سائزونو کاغذونو د (پخونو سنتي ميټرونو په حساب يادولے شي).

**فلسي** :- (فَ+ل+سي)-[عف تر-صف]- (۱) فلس واله- د کب په شان. واړۀ واړۀ نري پرېرکي لرونکے. (۲) فلس کاسيرې يا دتانبې نه جوړې پيسې.

**فلش** :- (ف+ل+شْ)-[انګ-اس-مذ]- د بيت الخلاګانو د جوړولو يوه نوې طريقه چې پرې اوبۀ راخلاصې شي او فضله د ځانه سره يوسي.

**فلش سسټم** :- (ـــ+س+سْ+ټ+مْ)-[انګ-تر-اس-مذ]- د فلش طريقه

**فلفل** :- (فِ+لْ+فِ+لْ)-[ع-اس-جم]- مرچ- تور مرچ.(اصلاً د ((پلپل)) معرّب دے).

**فلق** :- (فَ+لَ+قْ)-[ع-اس-مذ]- سحر- د سحر رڼا. سپېدې.

**فلك** :- (فَ+لَ+كْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- اسمان- هسك. د پخوانۍ عقيدې مطابق دا لاندې باندې اووۀ اسمانونه دي. د اووم اسمان نه بره د خدا ے پاك عرش او کرسي ده.
خو د نوي علومو له رويه دا صرف حد نظر دے او دا شين والے د اوبو براس دے کوم چې هر وخت د هوا په کره کښې موجود وي. (دغه وجه ده چې په هوائي جهازونو کښې پورته ښکته او هر طرف ته دغه شين والے ښکاري).

**فلك پايه** :- (ـــ+پا+يَ)-[عف تر-صف]- هغه چې پايه يا درجه ئې د اسمان هومره لوړه وي- د لوئې درجې خاوند.

**فلك پير** :- (ـــ+پي+رْ)-[عف تر-اس-مذ]- بوډا اسمان- زوړ اسمان.

**فلك پيما** :- (ـــ+پي+ما)

**فلك پرواز** :- (ـــ+پ+رْ+وا+زْ)-[عف تر-صف]- تر اسمانه پورې رسېدونکے- يعنې ډېر اوچت رسېدونکے.

**فلك سير** :- (ـــ+سي+ر)-[عف تر-صف]- په اسمان کښې سېل کوونکے- مجازاً د تېز زغلېدونکي اس، صفت.(۲) بنك.

**فلك شکوه** :- (ـــ+شُ+کو+هْ)-[عف تر-صف]- د اسمان هومره دبدبه لرونکے- ډېره زياته دبدبه او شان و شوکت لرونکے.

**فلك شګاف** :- (ـــ+ش+ګا+ف)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- په اسمان کښې چاؤد يا سورے پېدا کوونکے- ډېر په زوره (نعره يا غږ وغېره)

**فلکي** :- (فَ+لَ+کي)-[عف تر-صف]- فلك يعنې اسمان سره تعلق لرونکے- اسمان ته منسوب- اسماني.

**فلك** :- (فُ+لْ+ك)-[ع-اس-مذ]- بېړۍ- کشتۍ.

له فلکه ئې را کوز کړې د دنيا ته
ګويا ولويدې لــه فلکه و دريا ته (حافظ)

**فلکيات** :- (فَ+لَ+كْ+يا+تْ)-[عف-اس]- د اسمان (ستورو) وغېره په حقله علم. (انګ- اسټرونومي)

**فلکيه** :- (فَ+لَ+کي+يَ)-[عف تر-صف]- د فلکي تانيث دے. مونث نومونو سره راځي. لکه: اجرام فلکيه.

**فلم** :- (فِ+لْ+مْ)-[انګ-اس-مذ-جذ:ونه]- جلۍ- نرۍ پرده. (۲) هغه نرۍ اوږده پټه چې د سلولائيډ وغېره نه جوړه شوې وي- او په کېمره کښې اچولے شي. په دې باندې چې رڼا پرېوځي نو د مخامخ ښکاره کېدونکي څيز تصوير پرې جوړ شي. (۳) د سلولائيډ وغېره هغه نرۍ پټه کومه چې دوه ګوټې قدرې پلنه وي. او په سوونو فټه اوږده وي. په دې باندې پرله پسې په زرګونو تصويرونه اخستې شوې وي. هر کله چې دا رڼا ته مخامخ شي او فلم تاؤ کړے شي، نو په مخامخ سپينه پرده باندې د دې تصويرونو عکس داسې ښکاري لکه چې تصوير د ژوندو په شان حرکت کوي.

**فلم ساز** :- (ـــ+سا+زْ)-[انګ-ف-تر-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو):ه]- فلم جوړوونکے- په سنيما کښې د ښودلو فلم تياروونکے.

**فلم سازي** :- (ـــ+سا+زي)-[انګ-ف تر-اس-مو]- د فلمونو جوړونه.

**فلنېن** :- (فَ+لَ+نې+نْ)-[وـــــــ فلالېن]

**فلو** :- (فْ+لُو)-[انګ-اس-مذ)- د انفلوئنزا مخفف دے. سخت زکام.

**فلوټ** :- (ف+لُ+لو+ټْ)-[انګ-فر-اس-مذ]- د لرګي وړه شان ټکړه يا کاك (کارك) وي او د اوبو په سر وي. هرکله چې کب په کونډه کښې ونښلي نو دغه لرګے يا کاك وخوزي او کب نيوونکي ته پته ولګي. (۲) د اوبو په سر خوئيدونکے څيز. (۳) هغه پايوواله کشتۍ شان چې د نمائش دپاره جوړه کړے شي او تماشبينو په مخکښې ورو ورو بوتلے شي.

**فلوس** :- (فُ+لُو+سْ)-[ع-اس-ج]- (۱) د فلس جمع ده چې يوه پخوانۍ سکه وه. پيسې. (ځينې وخت د واحد په طور هم استعمالېږي)

کۀ څوك فخر کا په ننګ او په ناموس
دا په عشق کښې نه ارزېږي يو فلوس (رحمان بابا)
د اشنا د لاســه ناست يمــه زړۀ ستړے
په فلوس مې پکار نۀ دے درست وګړے (رحمان بابا)

(۲) لړ شان، پوټې شان.

په جامه ئې مه غولېږه هوښيار شه
دا بادام نه لــري مغز يــو فلوس (حميد بابا)

**فله** :- (فَ+لَ)-[اس-مو-ج:فلې]- د تلې يوه پله.

**فليته** :- (فَ+لي+تَ)-[ف-اس-مو-ج:تې]- باتۍ- د مالوچو يا د سپين ټوټې نه جوړه شوې باتۍ چې په ډيوه يا لالټېن کښې بلولے شي يا په زخمونو کښې کېښودے شي.

په سل ماتمه ئې سينه د حافظ وسوه
جدايۍ د ناتــرسۍ فليتې غښتې (حافظ)

**فلېټ** :- (ف+لې+ټ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه]- د مغربي طرز کور- چې کم نه کم پکښې د اوۀ کېدو کوټه- د ناستې پاستې کوټه- باورچي خانه. غسل خانه او بيت الخلا وي- په امريکه کښې ورته اپارټمنټ وائي- په يو لوے عمارت کښې داسې قسمه ګڼ فلېټونه جوړولے شي.

**فلپل** :- (فُ+لي+لْ)-[اس-جم]- خوشبوي- خوشبوئين.

من فلېل په يوه مچ سره بد بوي شي
بد دي نــهٔ شي يو زمان همراه د چا (خوشحال)

**فم** :- (فَ+مْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- خولهٔ.

په هغــو لويو خبرو شرمسار يم
چې هر چا وته ايستې له فمه ما (خوشحال)

**فَن** :- (فَ+نْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) هنر- كاريگري- صنعت. دستكاري. (۲) دوكه- چل- فرېب- مكر.

**فــن كــار** :- (ـــ+كا+رْ)-[ف تر-صف-اس-ج:ان]- د كــوم فــن مــاهر- لكــه: د موسيقۍ، مصورۍ ماهر- اېكټر يا سندرغاړے.

**فن كاره** :- (ـــ+كا+رَ)- د فن كار تانيث دے.

**فنا** :- (فَ+نا)-[ع-اس-مو-ج:گانې]- تېرېدنه- وركېدنه- مرگ- هلاكت

**فنا في الله** :- (ـــ+فـ+لْ+لا+ه)-[ع-تر]- د صوفيانو اصطلاح- هغــه مرتبــه چې پــه كښې يو صوفي هر وخت د الله په خيال او معرفت كښې بوخت وي.

**فنا كول** :- (تباه كول- هلاكول- وښكل- نېست كول. نوغے وركول.

په پنځمه ورځ كښې گل د باغ تازه شي
پــه شپږمــه ورځ فنا خپله هستي كا (خوشحال)

**فنا كېدل** :- (هلاكېدل- وركېدل- نېست كېدل- مړكېدل.

**فوفنا** :- (فُو ـــ)-[اعپ-تر-صف]- بېخي فنا- بالكل ورك. بېخي وجود نهٔ پاتې كېدنه. معدوم كېدنه. (ځيني خلك د ف په ځاے پ وائي يعني ((پوپنا)) وائي.

**فنان** :- (فَ+نْ+نا+نْ)-[ع-اس-صف]- وـــــ فنكار.

**فنجان** :- (فِ+نْ+جا+نْ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]- د قهوې د څښــكلو وړه پيــالۍ- مطلق پيالۍ.

**فندق** :- (فُ+نْ+دُ+قْ)-[ع-اس-مذ]- (۱) د يوې غونډې ببرې په شان مېوې نوم دے چې مغز ئې خوړے شي. پوستكے ئې سخت وي رنگ ئې سوربخن وي. (۲) د دغې مېــوې ونــه. (۳) د معشــوقې شــونډو لــه ورســره تشــبيه وركولے شي او د معشوقې د گوتو سرونو له هم چې په نكريزو سرې وي.

**فنډ** :- (فَ+نْ+ډ)-[انگ-مذ-ج:ونه]- سرمايه- پنگه.

**فنډ قائمول** :- (د كوم خاص مقصد دپاره د پنگې بنيــاد كېښــودل چې خلك پــه كښې برخه واخلي- او دا پنگه ښه زياته كړي.

**فنر** :- (فَ+نَ+رْ)-[ف-اس-مذ]- سپرنگ- د اوسپنې د تــار نــه جــوړ شــوے تــاؤ راتاؤ څيز چې لچك لري.

**فنلېنډ** :- (ف+نْ+لي+نْ+ډ)-[اس-مع]- د يورپ مغرب طرف تــه د يــو ملك نــوم، چې دارالحكومت ئې هيلسنكي نومې ښار دے.

**فنون** :- (فُ+نُو+نْ)-[ع-اس-ج]- د فن جمع ده.

**فنون لطيفه** :- (ـــلَ+طي+فَ)-[عف تر-اس-ج]- هغه هنرونه كوم چې اعلى يا نازك گڼلے شي لكه: شاعري- مصوري- موسيقي وغېره (انگ- فائن ارټس)

**فني** :- (ف+ن+ني)-[عف تر-صف]- فن سره تعلق لرونكے- فن يــا هنــر وغېــره تــه منسوب. (انگ-ټيكنيكل)

**فنــي اصــطلاحات** :- (ـــا+صْ+ط+لا+حـا+تْ)-[عــف تــر-اس-ج]- هغــه اصطلاحات (اصطلاحي الفاظ يا مركبات) چې فن- هنر- صنعت وغېره سره تعلق لري.

**فني خرابي** :- (ـــخَ+را+بي)-[اعپ تر-مو]- په څهٔ څيز كښې هغه نقص كوم چې (د مشــين وغېــره) پــه كــاردگۍ كښې پېدا شي. مشــيني خرابي- ټيكنيكل خرابي يا ورانے.

**فنــي دســتگاه** :- (ـــ+دَ+سْ+تْ+گا+ه)-[ف تر-اس-مو]- فنــي قــدرت- فنــي مهارت.

**فني صنعت** :- (ـــ+ص+نْ+عَ+تْ)-[ف تر-اس-مذ-ج:ونه]- هغه صنعت چې فن سره تعلق لري. تكنيكي صنعت.

**فني معلومات** :- (ـــ+مَ+عْ+لُو+ما+تْ)-[عف تر-اس-ج]- هغــه معلومات چې كوم فن يعني هنر، صنعت دستكارۍ وغېره سره تعلق لري.

**فنيات** :- (فَ+نْ+ني+يا+تْ)-[ف-اس-ج]- فني علوم- ټيكنيكي علوم. د هغــه علومو علم چې ارټس سره تعلق لري.

**فنيقي** :- (فَ+ني+قي)-[اس-مع]- هغه ژبه يا بل كوم څيز چې يو پخواني ملك ((فنيقيه)) سره تعلق لري.

**فو فنيقي** :- (ـــ+فُو)-[اس-صوت]- د پوكي وركولو اواز. د پوكي اواز- (ځينې خلك ف په پ بدله كړي او ((پو)) وائي.

**فنيقي فنا** :- (ـــ+فَ+نا)-[اعپ تر-صف]- بېخي فنا- بالكل ورك- بالكــل معدوم (لكه چې څوك په تلي كښې خاورې يا بــل كوم سپك شــے واچوي او پُوكے وركړي- او بيا پــه تلي كښې هېڅ نهٔ وي)- (ځيني خلك دواړوه في گانې په پې گانو بدلې كړي او ((پُوپنا)) هم وائي).

**فنيقي فنــا كول** :- (بېخي وركــول- بېخي نــابود كول- نــوغے اېســتل- بونســتې وښكل (پوپنا كول).

اوس ئې نخښې ليدے نهٔ شي
دې جهــان كـــړ خـــو فنا (خوشحال)

**فنيقي فنا كــول** :- (بېخي فنــا كېــدل- بېخي وركېــدل- بونســتې ختــل- بالكــل نېست كېدل- (پوپنا كول)

**فواجر** :- (فَ+وا+ج+رْ)-[ع-اس-ج]- د ((فاجر)) جمع ده. وــــ فاجر.

**فـــواحش** :- (فَ+وا+ح+شْ)-[ع-اس-ج]- د ((فاحشـــه)) جمـــع ده. (وـــــــ فاحشه)- بدكارۍ ښځې- بدكارونه- گناهونه.

**فواد** :- (ف+وا+دْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- زړهٔ- دل-قلب.

مبارك دولت كهٔ غواړې قناعت دے
د قانع له اندېښنو فارغ فـــواد شي (حافظ)

**فــواره** :- (فَ+وَ+وا+رَ)-[ع-اس-مو-ج:ې]- هغــه الــه يــا لوښــے د كــوم چې سر (خولهٔ) كښې نري نري سوري وي- چې اوبهٔ په كښې په زور سره راشي نو هغه په دارو كښې بره وولي.

دا عموماً دوه قسمه وي. يو په باغونو او لويو كورونو كښې جوړه شوې وي. دې ته اوبهٔ د داسې تالاؤ نه راځي- كوم چې د دغې بــاغ يــا د كــور د فوارې نه په ډېرې اوچته سطح واقع وي- چې اوبهٔ ورپرېخودے شي- نو د اوبو خاصيت دے چې هغه خپلــه سطح يــو شــان (هــواره) لــري- ځكــه د فوارې نه وتونكې اوبهٔ د تالاؤ سره د سطحې برابرولو دپاره ډېرې اوچتې شي.

دوېم قسم د بوټو د اوبو كولو د فوارو يا د غسل خانو د فوارو دے.

**فواسق** :- (فَ+وا+س+قْ)-[د فاسق جمع]- وــــــ فاسق.

**فواصل** :- (فَ+وا+ص+لْ)-[ع-اس-ج]- د ((فاصل)) جمع.

**فواكه** :- (فَ+وا+ك+ه)-[ع-اس-مو-ج:كې]- د فاكهه جمع ده. مېوې.

د جنت فـــواكه پاكو خولو له خاص دي
چې له فحشو له حرامو ئې امساك شي (حافظ)

**فوائد** :- (فَ+وا+ئی+دْ)-[ع-اس-ج]- د ((فائده)) جمع ده.

**فوت** :- (فَو+تْ)-[ع-صف] - (۱) نيشت- نيست- معدوم. (۲) ورك- هلاك- مړ.

**فوت کول** :- (ضائع کول- برباد کول- د لاس نه اېستل. لکه: دغه موقع مو ولې فوت کړه.

**فوت کېدل** :- (۱) مړکېدل- وفات مونډل- (۲) نيست کېدل- ورکېدل. نۀ پاتې کېدل- بربادېدل. لکه: دې سره خو به ټول مقصد فوت شي.

**فوت مونډل** :- (فوت کېدل- مړ کېدل.

نجـومي چـې قـدم نۀ ږدي بې نجومه
موت او خوف د ناکامۍ مومي له کومه (خ خ خ)

**فـوتي** :- (فَـو+تِي)-[ف-تـف] - ضـروري- مخـې سـره د کولـو- ارجنټ. لکـه: کارفوتي.

**فوتېدګي** :- (فو+تې+دَ+ګي)-[عف تر-اس-مو] - فوت کېدنه- مرګ- مړګېدنه.

**فوتېدل** :- (فو+تې+د+لْ)-[او____ فوت کېدل]

**فوتېدۀ** :- (فَو+تې+دَ)-[حمص] - (۱) مړ کېدۀ- فوت کېدۀ. (۲) ضائع کېدۀ.

**فوټو** :- (فو+ټو)-[انګ-اس-مذ-ج:ګان] - عکسي تصوير- هغه تصوير چې په کيمره وښکلے شوے وي.

**فوټو سټېټ** :- (___+س+ټ+ټْ)-[انګ-تر-اس-مذ] - د کاغذونو او چاپ شوو دستاوېزاتو وغېره نقل.

**فوټو سټېټ مشين** :- (___+م+شي+نْ)-[انګ-تر-اس-مذ-ج:ونه] - هغه مشين په کوم چې فوټو سټېټ نقلونه تيارولے شي.

**فوټو ګراف** :- (___+ګ+را+ف)-[انګ-تر-اس-مذ-ج:ونه] - عکسي تصوير- په کېمره اخستلے شوے تصوير.

**فوټـو ګرافر** :- (___+ګ+را+فَ+رْ)-[انګ-تر-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو):ه] - عکسي تصويرونه اخستونکے.

**فوټو ګرافي** :- (___+ګ+را+في)-[انګ-تر-اس-مو] - تصوير اخستنه- په کېمره د تصويرونو اخستلو هُنر- عکاسي.

**فوج** :- (فو+جْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه] - لښکر- ډېر سپاهيان- فوځ.

**فوج دار** :- (___+دا+رْ)- فوځ دار- د فوځ افسر.

**فوج کشي** :- (ف-پ-تر-اس-مو] - په بل ملك باندې خپل فوج سره حمله کول- په بل ملك خپل فوځ ورخېژول.

**فوجداري** :- (فو+جْ+دا+ري)-[عف تر-صف] - (۱) د مقدمو هغه قسم چې تعلق ئې جنګ جګړې مرګ ژوبلې سره وي. (۲) هغه عدالت چې پکښې د هغو مقدمو فيصلې کولے شي- کوم چې جنګ جګړو او مرګ ژوبلو سره تعلق لري.

**فوځ** :- (فو+ځْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه] - لښکر- سپاه.

**فوځ دار** :- (___+دا+رْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان] - پخوا په فوځ کښې يو عهده وه. د فوځ افسر- سپه سالار.

**فوځ داري** :- (___+دا+ري)-[عف تر-اس-مذ] - د فوځدار عهده. سپه سالاري.

**فوځي** :- (فَو+ځي)-[عپ تر-صف] - (۱) فوځ (لښکر) سره تعلق لرونکے فوځ ته منسوب. (۲) د فوځ سپاهي يا افسر- لښکري.

**فـوځي حکومـت** :- (___+ح+کُو+مَ+تْ)-[عـپ-تـر-اس-مـذ-ج:ونـه] - د سـول حکومت په ځاے د ملك نظام د فوځيانو په خپل لاس کښې اخستل. مارشل لا- د فوځيانو حکومت.

**فوځي کاروائي** :- (___+کا+رَ+وا+ي)-[پ-تر-اس-مو] - د کومې معاملې په قابو کښې راوستلو دپاره د فوځ نه کار اخستل.

**فور** :- (فَو+رْ)-[ع-اس-مذ] - تادي- جلتي.

**فوراً** :- (فَو+رَ+نْ)- زر- په تادۍ- په تلوار- مخې سره. په جلتۍ سره. سمدستي.

**فورټ** :- (فو+ر+ټْ)-[انګ-اس-ج:ونه] - قلعه- قلا.

**فورم** :- (فو+رْ+مْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه] - بڼه- شکل- صورت- وضع- فارم- (۲) نظم- ترتيب- نسق- ډول- فارم.

**فورم** :- (فو+ر+م)-[انګ-اس-مذ] - (۱) د خلکو د راغونډېدو ځاے. د جرګې ځاے. (۲) د کوم جماعت (پارليمنټ وغېره) دپاره د حاضرېدونکو غړو مقرره شمېر.

**فوري** :- (فَو+ري)-[عپ-صف] - جلتي- عجلت- مخې سره کېدونکے لکه: فوري اقدام کول.

**فوري طور سره** :- (___+طَو+رْ+س+رَ)- په سرعت سره- زرتر زره- په دې درنګ- په دې ساعت- سمدستي.

**فوريت** :- (فَو+ري+یَ+تْ)-[عف-اس-مذ-ج:ونه] - فوري والے- تادي. جلت والے.

**فوز** :- (فُو+زْ)-[ع-اس-مذ] - خلاصې- نجات- کاميابي.

حـافظ ځـاے د تـوغ پـه سـيوري کـړه سـروره!
ځـاے د فـوز بـه سـتا تـوغ د اصـطفا وي

**فوسل** :- (فو+س+لْ)

**فوصل** :- (فو+ص+لْ)-[انګ-اس-مذ] - د پخوانو زمانو حيوانات يا نباتات کوم چې په کاڼو ګټانو وغېره مواد کښې محفوظ پاتې شي.

**فوق** :- (فَو+قْ)-[ع-اس-ظ] - (۱) بره- پورته- پاس. (۲) اوچت والے- غوره والے- فضيلت- برتري.

تۀ قـادر پـه قـدرتونو ئې مطلق
تحت و فوق له تا مونډلے دے رونق (سعيد)

**في** :- (في)-[ع-حرف] - د جر (جار) توري دے. د (کښې) او (په کښې) دننه وغېره معنې ورکوي.

**فـي امـان الله** :- (___+ا+مـا+ن+ل+هْ)-[ع-جملـه] - د عربـي جملـه ده. د چـا د رخصتولو په وخت د دعا په طور وئيلے شي- چې د الله تعالى په امان کښې اوسې. د خداے په امان. په مخه دې ښه.

**فـي البديهـه** :- (___+ف+ل+بَ+دي+هْ)-[ع تر-تف] - فوراً- مخې سره- بغېر د سوچ او فکر کولو نه. عموماً د هغه شعر يا شعرونو په حقله وئيلے شي کوم چې يو شاعر په موقع بغېر د سوچ او فکر نه ووائي.

**في الحال** :- (ف+لْ+حا+لْ)-[ع-تر-تف] - (۱) فوراً- همه په دې حال کښې- هم په دې وخت- فـوراً- زر- پـه تـادۍ. (۲) پـه موجـوده وخت پـه حاضـر وخت کښې.

**فـي سـبيل الله** :- (___+س+بي+ل+لْ+لا+هـ)- د خـداے پـه لار کښـې. د خـداے دپاره- د خداے په نامه.

**في صد** :- (___+ص+دْ)-[عف تر] - په سکو کښې- په سلو کښې دومره برے. لکه: شل فيصده ګټه.

**فـي الفـور** :- (ف+لْ+فَـو+رْ)-[ع-تـر-تـف] - فـوراً- مخـې سـره- پـه دې سـاعت. سمدستي.

**في کس** :- (___+ك+سْ)-[عف تر-تف] - د يو کس په سر- هريو کس لره.

**في المثل** :- (ف+لْ+م+ث+لْ)-[انګ- اس-مذ-ج:ونه] - د ډارمې په رنګ- د ليك يو انداز چې په کښې د کوم څيز بڼه- څېره- کرۀ وړۀ څرګندولے شي- خو

قصه نۀ لري.

**فېډرل** :- (فې+ډِ+رَ+لْ)-[انګ-صف]- اجتماعي- وفاقي- فېډرل.

**فېډرل جمهوريت** :- (اجتماعي جمهوريت- وفاقي جمهوريت.

**فېډرل نظام** :- (اجتماعي- وفاقي نظام.

**فېډرېشن** :- (فِ+ډَ+رې+ش+نْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه]- اتفاق- اجتماع- اتحادي- اتحاديه- وفاقيت- فېډرېشن.

**فېرنګنه** :- (فَي+رَ+نْ+ګ+نِ+ه)- د فېرنګي تانيث دی. ميمه.

**فېرنګى** :- (فې+رَ+نْ+ګې)-[اس-مذ-ج:ان]- د يورپ باشنده- خاص طور سره د انګلستان باشنده- انګرېز. د دې لفظ ف عموماً په پ بدولے شي.

لالاسي راته وې چې پېرنګي به کور ته ځي

ځۀ خوار نصيب زما دے چې د ے د لا په پورته ځي (ن)

**فېرني** :- (فې+رْ+ني)-[و_____ فرني]

**فېروز** :- (فې+رو+زْ)-[ف-صف-مذ-مو:ه]- (۱) بريالے- فتح مند- سعوبه مند- کامياب- ګټيالے. (۲) خوش بخته- خوش نصيبي- بختور- مبارك (اصلاً دا لفظ پېروز (پې+رُو+زْ) دے. په پښتو کښې هم ځينې وخت دا ف په (پ) بدلولے شي. (۳) د نارينه ؤ په نومونو کښې راځي.

**فېروزه** :- (فې+رُو+زَ)-[ف-اس-مو-ج:زې]- (۱) يو قيمتي کاڼے چې خپل خاص رنګ لري، چې عموماً شين بخن نيلي وي. دا کاڼے بختور ګڼلے شي. (۲) د دغې کاڼي رنګ- شين بخن نيلي رنګ.

**فېروزي** :- (فې+رُو+زي)-[ف-صف]- (۱) شين بخن نيلي رنګ- (۲) فتح- سعوبه- کاميابي.

**فيزېک** :- (في+زې+کْ)-[انګ-اس-مذ]- د سائينس يوه څانګه- طبيعيات- فزکس- فزيك.

**فيس** :- (في+سْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) اجرت- معاوضه- محنتانه- (۲) هغه رقم کوم چې په مدرسو يا کالجونو کښې طالبعلمان هره مياشت ادا کوي. (۳) د ډاکټر- وکيل- يا د بل کوم وګړي يا جماعت د کوم خدمت يا کار بدله کښې چې کوم رقم ورکولے شي. اصلاً دا لفظ فيس د جمعي صيغه ده خو په پښتو اردو وغيره ژبو کښې ((فيس)) د واحد په طور استعمالېږي. په انګرېزي کښې ددې واحد (في) استعمالېږي.

**فېشن** :- (فې+شَ+نْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه]- ډول- طرز- انداز- طور طريقه- سينګار.

**فېشني** :- (فې+شَ+ني)-[انګ-پ تر-صف]- (۱) فېشن واله- فېشن کوونکے. د نوي وخت د رواج او انداز مطابق جامې اغوستونکے خوش پوشه- ډُولي. (۲) د فېشن مطابق- د نوي رواج يا طرز مطابق.

**فېشني فېصل** :- (فې+صَ+لْ)-[ع-اس-مذ]- فېصله کوونکے.

**فېصله** :- (فې+صَ+لَ)-[ع-اس-مو-ج:لې]- د کومې معاملې په حقله حکم- چې دغه معامله جګړه وغېره ختمه کړي.

**فېصله کول** :- (۱) د کومې مقدمې جګړې وغېره په حقله (انصاف سره) حکم کول- (جج په فېصله باندې)- (۲) ختمول. (۳) دچا وژل قتلول.

**فېض** :- (فې+ض)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) فايده- نفع- ښېګړه. ډېر والے- بخشش. (۲) د نارينه ؤ په نومونو کښې راځي.

**فېض بخش** :- (ـــ +بَ+خْ+ش)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- فېض بخښونکے- فايده رسوونکے- منفعت ورکوونکے.

**فېض حاصلول** :- (فايده اخستل- ښېګړه تر لاسه کول- منفعت اخېستل.

**فېض الهي** :- (ـــ +ا+لا+هي)-[عف تر-اس-مذ]- د خدا ے پاك فضل- الله پاك مهرباني او کرم- دخدا ے پاك عطا او ورکړه.

**فېض رسان** :- (ـــ +رَ+سا+نْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- فايده رسوونکے- ښېګړه رسوونکے- منفعت رسوونکے.

**فېض رساني** :- (ـــ +رَ+سا+ني)-[عف تر-اس-مو]- فايده رسونه- منفعت رسونه.

**فېض رَسول** :- (فايده رسول- ښېګړه کول.

زوراور که رسوي و چاته فېض

له دې فېض سره وګڼه ضرر (رحمان بابا)

**فېض مآب** :- (ـــ +مَ+آ+بْ)-[عف تر-اس-مذ]- د فېض ځاے- يو لقب د ے چې د کوم افسر يا لوے سړي دپاره استعمالېږي. ډېر فېض رسوونکے.

**فېض** :- (فې+ضْ)-[اس-مع]- د مراکو د ملك دارالحکومت.

**فېض کېپ** :- (ـــ +کَي+پْ)-[انګ-ا-تر-اس-مذ-ج:ونه]- يوه خاص قسم سور رنګې ټوپۍ چې تور ځوړندے لري- د دې رواج د فېض د ښهر نه علاوه په نورو افريقايي ملکونو کښې هم وۀ. او زمونږ تر هېواده را رسېدلے وۀ. خو په مغرب کښې د (فېض) ښهر په نامه مشهوره شوه. زمونږ هېواد ته د ترکو د ملك نه راغلے وه. ځکه دلته ورته خلکو ((ترکي ټوپۍ)) وې.

**فېضان** :- (فې+ضا+نْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- ډېر والے. (۲) فايده رسونه- نفع رساني- ښېګړه- عطا- بخښنه- بخشش.

**فېض الله** :- (فې+ضُ+لْ+لا+ه)-[اس-مع]-(۱۷۹۴ء) د سردار علي محمد خان روهيله زوے چې پېرنګيانو سره د يوې معاهدې نه وروستو په ۱۷۷۴ء کښې د رامپور اولنے پښتون نواب شۀ.

**فېکټري** :- (فې+کْ+ټ+ري)-[انګ-اس-مو]- کارخانه- فابريکه- د څيزونو د جوړولو ځاے.

**فيل** :- (فِي+لْ)-[ع-اس-مذ-ج:ان]- هاتي- آتي. (اصلاً د فارسي ((پيل)) دے. په پښتو کښې هم کله کله (ف) په (پ) بدلولے شي.

**فيل بان** :- (ـــ+با+نْ)-[عف تر-اس صف-مذ-ج:ان-(مو:ه)]- هاتي يا هاتيان ساتونکے- مهاوت.

**فيل باني** :- (ـــ+با+ني)-[عف تر-اس-مو]- د هاتيانو ساتنه- مهاوتي

**فيل پا** :-(ـــ پا)[عف تر-اس-مذ]يو مرض دے چې پښې پکښې ډېرې زياتې وپړسېږي.

**فيل چشم** :- (ـــ+چَ+ش+مْ)-[عف تر-صف]- د هاتي په شان سترګې لرونکے- مجازاً ووړې ووړې سترګې لرونکے- تنګ سترګې.

**فيل خانه** :- (ـــ+خا+نَ)-[عف تر-اس-مو-ج:نې]- د هاتيانو د ساتلو ځاے- د هاتيانو اصطبل.

**فيل ګوش** :- (ـــ+ګو+شْ)-[عف تر-صف]- (۱) د هاتي په شان غوږونه لرونکے- لوے لوے غوږونه لرونکے.

**فيل** :- (فِي+لْ)-[ع-اس-مذ]- د شطرنج د لوبې يوه مهره. پيل.

**فيل بند** :- (ـــ+ب+ن+دْ)-[ف تر-اس-مذ]- د شطرنج په لوبه کښې د ((فيل)) هاتي

داسې حالت- چې دوه پيادګان ورته (د هغې ته) سم شي- پيل تړ.

**فيل** :- (فِي+ل)-[ع-اس-مذ]- مکر- حيله- فرېب.

**فېل** :- (فې+لْ)-[انګ-صف]- ناکامياب- پاتې راتلونکے يا پاتې راتلنه.

**فيلډ** :- (فِي+لْ+ډْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه] -ميدان- پټے.

**فيلډمارشل** :- (د ټولـو نـه لـوړ فـوځي اعـزاز دے، چې پـه مېـدان کښـې جنګېدونکي او اعلی کارنامه سرته رسوونکي له ورکولے شي.

**فيلډر** :- (فِـي+لْ+ډ+رْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ان]- د کرکټ پـه لوبـه کښـې هغـه لوبغاړے څوك چې ويشتلې شوې غونډسکې رانيسي او وکټ کيپر طرف ته ئې ور غورځوي. مېدان کښې لوبه کوونکے.

**فيلډنګ** :- (فِي+لْ+ډ+نْ+ګْ)-[انګ-اس-مذ]- د کرکټ په لوبـه کښې پـه مېدان کښې غونډسکه رانيونه او وکټ کيپر ته ور غورځونه. په مېدان کښې لوبه کونه.

**فيلسوف** :- (فِي+لْ+سُو+فْ)-[يو-اس-صف-مذ-ج:ان-(مو):ه]- د فلسفې ماهر- فلسفه دان- فلسفي- فلاسفر- دانا- حکيم.

**فيله** :- (فِي+لَ)-[ف-اس-مو]- د شطرنج د لوبې يو مهره- پيل- هاتي.

**فيملي** :- (فې+مِ+لي)-[انګ-اس-مو]- خاندان- ټبر- کورنۍ- بال بچ- وارۀ زارۀ.

**فيملي پلاننګ** :- (ــــ+پ+لے+نِ+نْ+ګْ)-[انګ-تر-اس-مذ]- خانداني منصوبه بندي- دا د بچو د نۀ پېدا کولو يا د کم بچو د پېدا کولو يوه منصوبه ده.

**فينائل** :- (ف+نا+ئے+لْ)-[انګ-اس-جم]- د يو قسم دوائي نوم دے چې د جراثيمو وغېره ؤ د وژولو دپاره (په زمکه) چړکاوولے شي.

**فيوز** :- (ف+يُو+زْ)-[انګ-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) هغه نرۍ باتۍ په کومه کښې چې دارو (بارود) اچولې شوې وي- چې دې ته اور ورته کړے شي نو دغه اور پټاخې، ډائنامائيټ وغېره ته اورسي نو هغه خلاص شي. (۲) هغه نرے د تانبې وغېره تار کوم چې د بجلۍ بټنو په خوا کښې لګېدلے وي. هر کله چې د بجلۍ طاقت زيات شي نو دغه تار وسوځي او بجلي قطع شي.

**فيوض** :- (فُ+يُو+ضْ)-د ((فېض)) جمع ده. و ـــــ فېض.

**فيئر** :- (فے+ي+رْ)-[انګ-صف]- صفا- سوتره- ښکلے- ښائسته.

◈◈◈

# ق

**ق** :- (قا+فْ)-[اس-مذ-ج:ونه] د پښتو د پتې یودېرشم توری دی. د عربۍ یویشتم، د فارسۍ څلریشتم او د اردو اوویشتم توری دی. دا خاص د عربۍ توری دی. یعنې صرف په هغو الفاظو کښې راځي. کوم چې اصلاً د عربۍ ژبې ((ځبې)) وي. او په پښتو او نورو ژبو ((ځبو)) د عربۍ نه پور کړے دي. د پښتنو ځینې قبائل ئې په"ك" سره هم بدلوي. خو ځینې قبیلې ئې خاص د عربو په تلفظ کښې ئې د ادا کولو کوښښ کوي. عام نوم ئې "قاف" دے. خو ځینې وخت د "ك" نه د بیلتون د پاره ورته غټ قاف یا ټکوواله (نقطو واله) قاف هم وائي. "قاف قرشت" هم ورته وایي. دا غږ (ق) د ژبې (ځبې) وروستۍ برخې د تالو سره په جنګولو او د پوره بندېز راوستلو نه پس یك لخته د بندېز د لرې کولو په ذریعه ادا کولے شي. د پښتو ځینو لغت نویسو دا تورے په خپلو لغتونو کښې نۀ دے شامل کړے خو دا درسته نۀ ده. ځکه چې کوم الفاظ د پېړیو راسې په عامه پښتو کښې استعمالېږي. هغه د پښتو ژبې (ځبې) الفاظ ګڼلے شي. ان که اصلاً هغه د هرې ژبې (ځبې) وي. همدغه لغتو په خپلو تشریحاتو کښې داسې بې شمېره الفاظ استعمال کړي دي. کوم چې د "ق" غږ لري؛ دا غږ د "ك" نه علاوه په "غ" سره بدلېږي. د جمل په حساب د دې تورې قیمت سل (۱۰۰) دے.

**ق** :- (قَ+مْ+رِيْ)-په لیك کښې د قمري (کال) د مخفف په طور لیکلے شي. خو په لوستلو کښې "قمري" راځي.

**ق** :- (قو+ما+ن+دا+ن)-(۱) په لیك کښې د "قومان دان" د مخفف په طور راځي. خو تلفظ کښې "قومان دان" وئیلے شي. (۲) د "قوا" مخفف هم دے.

**ق- م** :- مخففات دي. "ق" د قبل دپاره راځي او "م" د "میلاد" دپاره یعنې د عیسی علیه السلام د پیداوښت نه اګاهو. د وخت یا تاریخ د ښودنې د پاره استعمالېږي. لکه سن ۱۰۰۰ ق م.

**قآن** :- (قا+آ+نْ)-[اس-ف-مذ]-ډېر انصاف واله-سخي-هوښیار یو لقب ؤ-چې د ټولونه اول د چنګېز خان زوے اکتائي خان له ورکړے شوے ؤ-بیا وروستو د ترکستان د بادشاهانو لقب وګرځېد. مجازاً هر زوره ور بادشاه ته وائي.

**قاب** :- (قا+ب)-[ق-اس-مذ-ج: ونه]-(۱) لویه رکېبۍ-لوې تالۍ. (۲) چوکاټ-فریم. (۳) د تماچې وغېره قاش. (دا د ترکۍ ژبې لفظ "غاب" نه اخستے شوے دے)

**قـاب** :- (قا+ب)-[ع-اس-مذ]-د فاصلې یو پخوانے کچ-د فاصلې یوه اندازه چې د لیندې موټې نه تریو سره (ګوټه) پورې وي.

**قـاب قوسېن** :- (قا+بَ+قَو+سَې+ن)-[ع تر-اس-مذ]-(۱) د دوو لیندو هومره فاصله-مجازاً ډېر نزدې- (دا مرکب د قران پاك د نجم د سورت نه اخستے شوے دے).

موسی ته څرګند نۀ ؤ وعیسی ته ښکاره نۀ شو
په قاب او قوسېن په هغه اسرار خبره!

(۲) (شعر) د معشوقې وروځې.

**قـابض** :- (قا+بِ+ضْ)-[ع-صف-مذ-ج: ان-(مو: ه]-(۱) قبضه کوونکے-په خپل لاس کښې راوستونکے. (۲) ساه قبض کوونکے-ساه وښکونکے. (۳) روزي تنګوونکے. (۴) هغه خوراك یا دارو چې په ګېډه کښې قبض پیدا کوي. (۵) (قانون) قبضه لرونکے-مالك-اختیار لرونکے.

**قـابض ارواح** :- (—اَ+ رْ+وا+ح)-[عف تر-اس-مذ]-د روحونو قبض کوونکے-ساه وښکونکے-مراد ترې عزرائیل (ع) دے.

**قابض قابل** :- (قا+بِ+لْ)-[ع-اس-صف-مذ-مو:ه]-(۱) قابلیت لرونکے-اهل. (۲) د قبلېدو وړ-لائق-وړ. (۳) قبلوونکے-تسلیموونکے-منونکے. (۴) پوهه-هوښیار.

**قابل اجراء** :- (—اِ+جْ+را)-[عف تر-صف]-د جاري کولو وړ-د نافذ کولو وړ.

**قابل ازدواج** :- (—اِ+زْ+دِ+وا+ج)-[عف تر-صف]-د وادۀ قابل.

**قابل استعمال** :- (—اِ+سْ+ت+عْ+ما+ل)-[عف تر-صف]-هغه څیز چې په استعمال کښې راوستے شي. یعنې کار ترې اخستے شي. (په نفي کښې هم استعمالېږي. لکه ناقابلِ استعمال)

**قابل اشتعال** :- (—اِ+شْ+ت+عا+ل)-[عف تر-صف]-هغه کار یا لیك وغېره چې یل پرې په اشتعال (سخته غصه) کښې راتلے شي.

**قابل اعتراض** :- (—اِ+عْ+ت+را+ضْ)-[عف تر-صف]-د اعتراض قابل-هغه کار یا لیك وغېره چې اعتراض پرې کیدے شي.

**قابل التفات** :- (—اِ+لْ+ت+ف+تْ)-(و________ قابل توجه)

**قابل امانت** :- (—اَ+ما+نَ+تْ)-[عف تر-صف]-(۱) هغه کس چې امانت ور څخه کېښودے شي-د امانت د کېښودلو لائق. (۲) مجازاً-انسان چې د خدائے پاك هغه لوے امانت ئې قبول کړ. کوم چې غر هم نۀ شو قبولولے.

**قابل انتقال** :- (—اِ+نْ+ت+قا+لْ)-[عف تر-صف]-هغه څیز چې د یونه بل ته منتقل کیدے شي (ورکړے کیدے شي) (په نفي کښې هم استعمالېږي-یعنې ناقابل انتقال)

**قابل بحث** :- (—بَ+حْ+ث)-[عف تر-صف]-هغه معامله وغېره چې بحث پرې کیدے شي-د بحث وړ.

**قابل برداشت** :- (—بَ+رْ+دا+ش+ت)-[عف تر-صف]-د زغملو قابل-هغه کار-خبره وغېره چې زغم ئې کیدے شي. (عمومًا د نفي په شکل کښې استعمالېږي)

**قابل تحسین** :- (—تَ+حْ+سِی+ن)-[عف تر-صف]-د صفت وړ-د تعریف قابل.

**قابل تخفیف** :- (—تَ+خْ+فِی+ف)-[عف تر-صف]-هغه کار، شمار وغېره چې په کښې کمے راوستلے کیدے شي. (عمومًا د نفي په شکل کښې استعمالېږي لکه: ناقابل تخفیف سزا)

**قابل تردید** :- (—تَ+رْ+دِی+د)-(عف تر-صف)-هغه خبره یا بیان وغېره چې تردید ئې کیدے شي. یعنې چې غلط ثابتېدے شي. (د نفي په صورت کښې ډېر استعمالېږي-یعنی ناقابل تردید، یا غېر قابل تردید)

**قابل تسلیم** :- (ـــتَ+سْ+لِی+م)-[عف تر-صف]-د منلو وړ-د تسلیمولو لائق.

**قابل تعریف** :- (ـــتَ+عْ+رِی+ف)-[عف تر-صف]-هغه کار یا عمل وغیره چې د صفت وړ وي. د صفتَ وړ- ښهٔ- ښکلے-اعلی.

**قابل تغیّر** :- (ـــتَ+غَ+یْ+یُ+رْ)-[عف تر-صف]-د تغیر موندلو وړ-د بدلېدلو قابل-بدلون موندونکے-بد لېدونکے. (عموماً د نفي په شکل کښې راځي ناقابل تغیر)

**قابل تقسیم** :- (ـــتَ+قْ+سی+م)-[عف-صف]-هغه څیز چې برخې برخې کېدے شي یا چې وېش ئې کېدے شي. (د نفي په صورت کښې ډېر استعمالېږي یعنې ناقابل تقسیم یا غیر قابل تقسیم)

**قابل توب** :- (ـــتو+ب)

**قابل تیا** :- (ـــت+یا) (وـــــــ قابلیت)

**قابل توجه** :- (ـــتَ+وَ+جْ+جُ)-[عف تر-صف]-هغه کار- څیز معامله وغیره چې د توجه وړ وي-اهم- ضروري.

**قابل ذکر** :- (ـــذْ+ك+رْ)-[عف تر-صف]-هغه خبره- څیز وغیره چې د بیان یا د حال وئیلو وړوي. اهم- ضروري.

**قابل رحم** :- (ـــرَ+ح+مْ)-[عف تر-صف]-هغه کس چې د رحم او مهربانۍ کولو لائق وي-مظلوم- ستم دیده-په خراب حالت کښې.

**قابل رشک** :- (ـــرَ+شْ+ك)-[عف تر-صف]-هغه کار چې د سړي په زړهٔ کښې رشك پېدا کړي. یعنې چې د سړي په زړهٔ کښې دا خواهش را ولړزوي چې دا کار ماهم کولے شوے یا دغه څیز زما هم وے.

**قابل سماعت** :- (ـــس+مَا+عَ+تْ)-[عف تر-صف]-د اورېدلو جوګه- د اورېدلو وړ-(عموماً د مقدمو په حقله وئیلے شي)

**قابل عمل** :- (ـــعَ+مَ+لْ)-[عف تر-صف]-هغه کار تجویز وغیره چې په عمل کښې راوستل ئې ممکن وي. (د نفي په صورت کې ډېر راځي یعنې ناقابل عمل)

**قابل غور** :- (ـــغَو+ر)-[عف تر-صف]-(۱) هغه خبره معامله مسئله وغیره چې غور و فکر پرې کېدے شي. (۲) قابل توجه.

**قابل فنا** :- (ـــفَ+نا)-[عف تر-صف]-د فنا کېدو وړ-هغه څیز چې بالکل ورکېدے شي یا معدوم کېدے شي.

**قابل فهم** :- (ـــفَ+هـ+مْ)-[عف تر-صف]-په پوهه کښې راتلونکے-په عقد کښې راتلونکے. (د نفي په شکل کښې هم ډېر استعمالېږي یعنې ناقابل فهم یا غیر قابل فهم)

**قابل قبول** :- (ـــقَ\قُ+بُو+ل)-[عف تر-صف]-د قبلولو یا قبلېدلو وړ- ښهٔ- ښکلے- جائز- صحیح. (د نفي په شکل کښې هم ډېر استعمالېږي یعنې ناقابل قبول یا غیر قابل قبول)

**قابل قدر** :- (ـــ قَ+دَ+رْ)-[عف تر-صف]-د قدر وړ- هغه کس چې د قدرولو لائق وي.

**قابل نکاح** :- (ـــنِ+کا+ح)-[عف تر-صف]-د نکاح وړ- بالغ- بالغه-ځوانه (ښځه)

**قابل هضم** :- (ـــهَـ+ظ/ظْ+مْ)-[عف تر-صف]-د هضمېدو وړ- هغه څیز چې هضمېدے شي.

**قابله** :- (قا+ب+لَ)-(۱) د "قابل" تانیث دے. (۲) دائي.

**قابلیت** :- (قا+ب/بِ+لِی+یَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-اهلیت، وړتوب، وړتیا، موزونیت، هوښیارتوب، عقلمندي، پوهه.

**قابلیت حربي** :- (حَ+رْ+بِي—)-[ف تر-اس-مو]-جنګي قابلیت-جنګي هنرمندي- د جنګ د کارونو پوهه.

**قابو** :- (قا+بُو)-[ع-اس-مذ]-(۱) اختیار- زور- طاقت- حکم.

د پېوند قابو ئې هېڅ نشته ناصحه
محبت ئې هسې زړهٔ پرېکړے چور دے (حمید)

(۲) ګرفت- نیونه- قبضه.

**قابو موندل** :-

**قابو میندل** :- (۱) د چا په قبضه کښې د راوستلو زور قوت موندل/میندل- وس برکېدل (۲) اختیار موندل- لاس برکېدل.

**قابو نهٔ راتلل** :- د کوم کار د کولو زور قوت په خپل ځان کښې نهٔ لیدل.

**قابو نهٔ کېدل** :- طاقت نهٔ لرل-د کوم کار د کولو زور قوت نهٔ لرل.

**قابو نهٔ لرل** :- زور نهٔ لرل- د کوم کار د کولو زور قوت نهٔ لرل.

**بې قابو کېدل** :- (۱) د قابو نه وتل- د اختیار نه بهر کېدل-د واګونه بهر کېدل- بې واګو کېدل. (۲) زور نهٔ پاتې کېدل-کمزورے کېدل.

**په قابو کښې راتلل** :- په قبضه کښې راتلل- د زور لاندې راتلل- لاس برکېدل- لاس ته راتلل-په ګرفت کښې راتلل.

**په قابو کښې ساتل** :-

**په قابو کښې لرل** :- په خپله قبضه کښې ساتل- د خپل لاس لاندې ساتل- په خپل واك اختیار کښې ساتل.

**له قابو وتل** :- د قبضې نه وتل-د وس نه باهر کېدل.

چې دیدن ئې له قابو د اشنا ووت
ووتو په قابو شهٔ زما روح (حمید)

**قابوچي** :- (قا+بُو+چي)-[اس-مذ]-دربان- وربه.

ماچې و کوت د دنیا خلک مختورے
قابو چې دې واړه ګوري پتاؤ سیورے (خوشحال)

**قابیل** :- (قا+بِی+ل)-[اس-مع]-د حضرت آدم (ع) د مشر زوے نوم-چاچې خپل کشر ورو هابیل وژلے ؤ. د دنیا اولنے قاتل-او د خدا ے پاك او دخپل پلار اولنے نافرمان. (وائي چې هغه دا قتل د خپلې خور اقلیما د حصول د پاره کړے ؤ).

**قات** :- (قا+ت)-[اس-صوت]-(۱) د چرګې شور- د چرګې ټغېدنه. (۲) د چرګې د بچو د راجمع کولو د پاره د قت قت اواز. (۳) قط-ته-برغدون-قت.

**قات خوړل** :- قت کېدل- برغدېدل-ټپ کېدل.

**قات کول** :- قت کول- برغدول- ته کول- راما تول- ټپ کول.

**قات کېدل** :- ته کېدل- برغدېدل-را ټپ کېدل.

**قات کېدونکے** :- (ـــکې+دُو+نْ+کَے)-[اس-فا-مذ-ج: کِي]-ته کېدونکے-ټپ کېدونکے- برغېدونکے.

**قات کېدونکے میز** :- (ـــکې+دُو+نْ+کَے+مے+ ز)-[اس-مذ-ج: ونه]- هغه میز چې را ما تېدے او غونډېدے شي.

**قات** :- (قا+ت)-[اس-مذ-ج:ونه]-د "قحط" بدل شکل دے. قحط-د خوراك د څیزونو یا د بل کوم څیز کمے یا بېخي ورکیدنه.

**قاتر** :- (قا+تُ+رُ)-[اس-مذ-ج:ان]-قچر-قاطر.

**قاتره** :- (قا+ت+رَ)-[اس-مو-ج:رې]-قچره-قاطره.

**قاتګي** :- (قا+تَ+ګي)-[اس-مو]-ټپ کېدنه-ته کېدنه-برغون.

**قاتل** :- (قا+ت+لْ)-[ع-اس/صف-مذ-ج: ان، (مو: ه]- (۱) قتل کوونکے- وژونکے-(وجونکے) مړکوونکے-خوني.

دا څهٔ سترګې دي قاتلې
چې هم سیف دي هم خنجر (رحمان بابا)
(۲) (شاعري) معشوقه- محبوب.

**قاتول** :- (قا+تَ+ؤ+لْ)-[مص]-قت کول-ټپ کول-قات کول-راماتول.

**قاتول** :- (قا+تَ+ؤ+لْ)-[مص]-قحط راوستل-د کوم څیز کمے راوستل-قحطي راوستل.

**قاتولیک** :- (قا+تو+لي+ك)-[انګ-صف]-کاتولیك (Catholic) د عیسائیانو یوه لویه فرقه-چې د روم (اټلي) د پوپ (پاپا) عقیدتمنده ده. (په مقابله کښې د پروټسټینټ فرقې).

**قاتي** :- (قا+تِي)-[اس-مو]-قحط-قحطي-د یو څیز ببخي ورکېدل.

**قاتي ملخ** :- (ـــ م+ل+خْ)-[اس-مذ-ج:ان]-هغه ملخ چې د ملخانو هغې قسم سره تعلق لري-کوم چې په لویو سېلونو کښې راځي-او فصلونه ونې بوټي هرشین شینکے وخوري او په نتیجه کښې په دغه ملك کښې قحط راولي. مجازاً-ډېر خوراك کوونکے سړے دسترخوان صفا کوونکے.

**قاتي** :- (قا+تِي)-[صف]-ته کېدونکے-ټپ کېدونکے- برغېدونکے.

**قاتېدل** :- (قا+تې+د+لْ)-[مص]-قات کېدل-ټپ کېدل- راماتېدل-(فرنیچر وغېره)

**قاتېدل** :- (قا+تې+د+لْ)-[مص]-قحط کېدل-قحطي راتلل- د کوم څیز ډېر کمے راتلل- د کوم څیز ببخي نهٔ پیدا کېدل.

**قاچار** :- (قا+چا+رْ)-[ت-اس مع]-د ایران د مشهور شاهي خاندان نوم-کوم چې د خاندان صفیه نه پس د ایران حاکمان شو. د دې خاندان اصل د یوناني قراجارنه دے. دا د هلاکو خان د نمسي ارغون خان اتالیق ؤ. ۱۹۱۴ء د جنګ عظیم نه پس په ملك کښې انقلاب راغلو. او حکومت آقا رضا خان پهلوي په حېث د صدر په خپل لاس کښې واخستو او د یورپیانو نه ئې ملك ازاد کړو.

**قاچاق** :- (قا+چا+ق)-[ت-اس-مذ-ج: ونه]-(۱) ګریز-د حکومت د طرفه ممنوعه مال-سمګل شوے مال. (۲) دوکه مار-چالباز.

**قاچاقي** :- (قا+چا+قي)-[ت-صف]-(۱) غېر قانوني-سمګل شوے. (۲) د سمګلرانو په طور.

**قاچاقي مال** :- غېر قانوني مال- سمګل شوے مال.

**قادح** :- (قا+د+حْ)-[ع-اس/صف-مذ-مو:ه]-الزام لګوونکے-تور پورې کوونکے.

**قادر** :- (قا+د+رْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]-(۱) قدرت لرونکے-طاقت لرونکے. (۲) دیو کار کولو زور قوت لرونکے. (۳) د خداے پاك یو صفاتي نوم. په دې صورت کښې ئې صحیح تلفظ عموماً د دال زېر سره (قا+د+رْ) دے. په مرکباتو کښې ئې تلفظ همداسې د دال زبر سره راځي. (۴) د نارینه ؤ په نومونو کښې استعمالېږي.

**قادر کېدل** :- د کوم کار د کولو زور طاقت لرل-په کوم کار قابو موندل- لاس یا وس رسېدل.

وتوپي وته ئې شاکره
چې قادر شۀ په افسر (رحمان بابا)

**قادر مطلق** :- (ـــ مُ+طْ+لَ+قْ)-[اس-مع]- په پوره ډول یا ببخي قدرت لرونکے-خداے پاك.

**قادره** :- (قا+د+رَ)-[د "قادر" تانیث دے].

**قادري** :- (قا+د+ري)-[صف]-(۱) هغه چې قادر سره تعلق لري-د شیخ عبدالقادر جیلاني د سلسلې صوفي. (۲) قدرت لرنه- زور لرنه-قابو لرنه.

**قادریه** :- (قا+د+ري+ئ)-[اس-مع]-(۱) د شیخ عبدالقادر جیلاني (رح) د تصوف سلسله. (۲) د قادریه سلسلې صوفي.

**قادسیه** :- (قا+دِ+سي+ئَ)-[ع-اس مع]-په عراق عرب کښې د یو مشهور ښهر نوم.

**قادیاني** :- (قا+د/دِ+یا+نِي)-[اس مع-مذ-ج:نې]-(۱) د "قادیان" نومې ښهر سره تعلق لرونکے. (۲) د غلام احمد قادیاني د مذهب منونکے.

**قارعه** :- (قا+ر+عَ)-[ع-س-مو]-(۱) مصیبت-آفت-بدبختي. (۲) د قیامت ورځ. (۳) په قرآن مجید کښې د یو سورة نوم.

**قارغهٔ** :- (قا+ر+غ)-[اس-مذ-ج-غان]-(۱) مشهور تورونکے مارغهٔ-کارګهٔ. کړاغ [ف:زاغ]-کاغه. (۲) مجازاً-ډېر هوښیار-زیرك. (۳) دلیندي د موټې توره نخښه.

مري چې لینده ویني قارغهٔ ستا دا خال د وروځیو
ناست دے تور قارغهٔ په څو، په موټی د کمان (خوشحال)

**قاروره** :- (قا+رُو+رَ)-[ع-اس-مو-ج:رې]-د متیازو ښیښه-د متیازو بوتل-چې حکیم یا ډاکټر ته د ښودلو د پاره وړے شي.

سکون وقار تحمل نهٔ لري زما ویره شي
چې قاروره د دین په سنګ د قهر ماته نهٔ کړې (حافظ)

**قاروره شناس** :- (ـــ شِ+نا+س)-[عف تر-صف مذ-ج:ه]-د قارورې پېژندونکے-د متیازو د رنګ وغېره نه مرض معلوموونکے.

**قارون** :- (قا+رو+ن)-[اس-مع]-په بني اسرائیلو کښې یو سړے-چې د حضرت موسیٰ ؑ خپل (د ترهٔ زوے) ؤ چې بې کچه ډېر دولتمند ؤ. او ډېرې خزانې ئې لرلې-خوبې حده ډېر شوم ؤ. حضرت موسیٰ ؑ ورته ډېر نصیحت کاوهٔ-خو هغهٔ د خپل مال زکات نهٔ یستهٔ-آخر د موسیٰ ؑ دښمن شهٔ. او په حضرت موسیٰ ؑ ئې د زنا تهمت ولګاوهٔ. حضرت موسیٰ ؑ خداے پاك له دغې الزامه بري کړ. او قارون د خداے پاك په قهر کښې راغے. او سره د خپلو خزانو ئې په زمکه کې ننه یست. (۲) مجازاً- هر هغې مالداره سړي ته چې شوم هم وي. طنزاً قارون وایه شي.

**قارون خزانه** :- (ـــ خَ+زا+نَ)-[عپ تر-اس-مو-ج: نې]-ډېره لویه خزانه-ډېر زیات مال دولت.

لکه: دے فضول خرچي ته خو د قارون خزانه هم نهٔ شي ټینګېدے.

**قاره** :- (قا+ر+رَ)-[ع-اس-مو-ج: رې]-براعظم-لویه وچه.

**قاري** :- (قا+ري/قراء)-[ع-اس-مذ-ج:ان]-لوستونکے-د قران- (د قاعدو او اصولو مطابق) لوستونکے-قرات کوونکے.

**قاري** :- (قا+ري)-[صف]- د "قعر" نه جوړ شوے دے-ژور- جور-لوے-ډونکے- (عموماً د دریاب په صفت کښې راځي).

**قاري دریاب** :- (ـــ دَ+رْ+یا+ب)-[عپ تر-اس-مذ]- سمندر- بحر-بحیره.

**قارئین** :- (قا+ری+ای+ن)-[ع-اس-ج]-لوستونکي-خوانندګان.

**قاز** :- (قا+ز)-[اس-مذ-ج:ونه]-(۱) مشهور مارغهٔ-لویه بطه. (۲) زاڼې.

**قازه** :- (قا+زَ)-[افپ تر-اس-مو-ج: زې]-د "قاز" تانیث دے.

**قاس** :- (قا+س)-[ف-اس-مذ]-چیندخه.

**قاسط** :- (قا+س+ط)-[ع-صف-مذ-مو:ه]-(۱) ظلم زیاتے کوونکے-ظالم. (۲) عدل کوونکے-منصف-عادل. (دا لفظ د اضدادو د لغتونو څخه دے)

**قاسم** :- (قا+س+مْ)-[ع-اس/صف-مذ-ج:ان، (مو):ه]-(۱) تقسیموونکے-وېشونکے- وېش کوونکے. (۲) د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي.

(۳) قسم خوړونکے.

**قاسم علي خان اپريدے** :- [اس مع]-اصلاً د ره ادم خېل اوسېدونکے ؤ. نېکونه ئې هند ته تلي او هلته مېشته شوي وو. د هند په فرخ اباد کښې ۱۱۸۳هـ کښې زيږېدلے او لوے شوے ؤ. ډېر مېړنے توريالے سړے ؤ. تورې سره سره د قلم خاوند هم ؤ. په هندي فارسي او پښتو دريو ژبو کښې ئې شاعري کړې ده. او په يو لغت کښې ئې د څلو ژبو مترادف الفاظ را جمع کړي دي. د خپلو خلکو يو تاريخ ئې هم ليکلے دے خو دے په خپل ځان هم يو تاريخ ؤ. ۱۲۳۱هـ پورې ئې ژوند يقيني دے.

**قاسمي** :- (قا+سِ+مي)-[اس مع]-د ديهه پال ځانګه ده. پنې دي.

**قاسي** :- (قا+سِي)-[صف]-سخت-کلك-مجازاً ناترسه- بې رحمه.

چې د ژبې په سکين جرح په زړۀ کا
قاسي زړۀ ئې سياه سنګ بلا صفا وي (حافظ)

**قاش** :- (قا+ش)-[اس-مذ-ج: ونه]-د تماچې کځوړه-د څرمنې نه جوړه شوې هغه کځوړه چې تماچه په کښې محفوظه کېښودے شي. (او په غاړه کښې زوړندولے شي)-د تماچې تېکے.

**قاش** :- (قا+ش)-[ت-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) وروځه-ابرو. (۲) ترازه (د ختيکي يا د هندواني)-پراده-دړه.

**قاش قاش** :- (ــــقا+ش)-ترازې ترازې-په اوږدو پريکړې ټکړې.

**دزين قاش** :- (دَ-زِي-نــــ)-[ت ف تر-اس-مذ-ج:ونه]- د اس په زين کښې وړاندې او ورستو د ترازې په شان اوچتې جوړې شوې برخې.

**قاشغه** :- (قا+شُ+غ)-اس-مو-ج: غې]-قاشق-قاشوقه-کاشوغه- وړه چمچه.

**قاشقار** :- (قا+شْ+قا+ر)-[اس-مع]-د افغانستان او د سرحد قطب طرف ته د يوې علاقې نوم.

**قاشقارۍ** :- (قا+ش+قا+رَ+ی)-(۱) د "قاشقاري" تانيث دے. (۲) د کاشقار د علاقې ژبه (جبه)-(۳) د قاشقار په علاقه کښې جوړ شوے څيز (د مؤنث د پاره). لکه: قاشقارۍ ټوپۍ.

**قاشقاش** :- (قا+ش+قا+ش)-[اس-جم]-د ډوډۍ تخم-خشخاش.

**قاصدي** :- (قا+صِ+دي)-[عف تر-اس-مو]-(۱) د قاصد کار-پېغام وړنه-استازے توب. (۲) د يو ګل نوم- ګل قاصدي.

**قاصر** :- (قا-صِ-رْ)-[ع/صف-مذ-مو:ه]-(۱) قصر لرونکے-کمے لرونکے-عيب يا نقص لرونکے. (۲)پاتې راتلونکے-ناکامیابه-مغلوب.

**قاضي** :- (قا+ضِي)-[ع-اس-مذ-ج:ان/قضات]-(۱) شرعي فېصله کوونکے-د شرعې مطابق حکم لګوونکے-د جګړو او د تنازعو فېصله کوونکے جج. (۲) د قاضيانو د خاندان يو فرد.

**قاضي فلک** :- (ــــفَ+لَ+کْ)-(عف تر-اس-مذ]-د اسمان قاضي- مشتري سياره ترې مراد ده.

**قاضي القضات** :- (یُ+لْ-قُ(ض)-ضا+ت)-[ع-اس-مذ]-په اسلامي حکومتونو کښې يوه عهده د ټولو قاضيانو مشر يا افسر. لوے جج- چيف جسټس.

**قاضي القضاة** :- (ــــیُ+لْ قُ+ضا+ت)-[ع-تر-اسم/سم)-په اسلامي حکومتونو کښې د ټولونه د لوے قاضي عهده-د قاضيانو قاضي-د قاضيانو مشر يا افسر-لوے جج- چيف جسټس.

**قاضي بيضاوي** :- (ع-اس-ج)-په ايران کښې د بضا بنهر اوسېدونکے يو مشهور عالم چې د قرآن شريف د يو مشهور تفسير مصنف دے. د تفسير نوم انوار التنزيل دے.

**قاضي عطاء الله جان** :- [اس-مع]-يو پښتنو مشر- چې د پښتنو مشهور تاريخ ئې ليکلے دے. د پېښور خوا کښې د لنډۍ کلي اوسېدونکے ؤ.

**قاطر** :- (قا+طِ+ر)-[ع-اس-مذ-ج:ان]-قاتر-قچر.

**قطرچي** :- (ــــ چِي)-[تف تر-اس-مذ-ج: ان]-د قچرو ساتونکے- د قچرو دساتنې ملازم.

**قاطري** :- (قا+طِ+ري)-[عف تر-صف]-د قاطر (قچر) سره تعلق لرونکے- د قچر يا د قچرې.

**قاطع** :- (قا+طِ عْ)-[ع- اس-مذ-ج: ان]- (۱) پرې کوونکے-قطع کوونکے. غوڅوونکے. (۲) پرېکړے- فېصله کوونکے-قطعي. (۳) دارو چې کوم خلط وغېره ورکوي. لکه : قاطع صفرا.

**قاطع الطريق** :- (ــــ عُ+ط)-طَ-رِي-ق)-[ع تر-اس-مذ]-لار قطعه کوونکے. مجازاً لار شوکوونکے-شوکمار-ډکه مار.

**برهان قاطع** :- (بُ+رْ+ها+نــــ)-[عف تر-اس-مذ]-(۱) هغه دليل چې خبره غوڅه ياختمه کړي. بحث غوڅوونکے دليل- فېصله کوونکے دليل. (۲) د فارسي د مشهور لغت نوم.

**قاطن** :- (قا+طِ+نْ)-[ع-اس-مذ-ج: ان/قطان]اوسېدونکے-استوګنه لرونکے- استوګن.

**قاعد** :- (قا+عِ+دْ)-[ع-صف-مذ-مو: ه]-ناست.

**قاعدتًا** :- (قا+عِ+دَ+تَ+نْ)-[ع-تف]-د قاعدې له رويه-او طور طريقې په مناسبت.

**قاعده** :- (قا+عِ+دَ)-[ع-اس-مو-ج:دې/قواعد]-(۱) طريقه-طور-رسم. (۲) اصول-بنياد-اساس. (۳) هغه وړوکے کتاب کوم چې ماشوم په اول ځل لولي. (۴) د مثلث يا تکون هغه خط کوم چې لاندې وي.

**قاعدې** :- (قا+عِ+دې)-(۱) د "قاعده" جمع ده. (۲) د "قاعده" اضافي او مجر وري وغېره (متغير) شکل.

**دقاعدې پابندي کول** :- د قانون پابندي کول-د قانون مطابق کار کول.

**دقاعدې مطابق** :- د قانون مطابق-د رسم او رواج سره سم-د اصول مطابق.

**قاغمه** :- (قا+غ+مَ)-[اس-مو]-د يو قسم ټوکې نوم دے-کاغمه.

**قاغه** :- (قا+غَ)-[اس-مو-ج:غې]-د قارغۀ مؤنث-د کارغۀ ماده.

**قاف** :- (قا+ف)-[اس-مع]-د يو غر نوم دے- چې د کيسپين د سمندر او اسود د سمندر تر منځه دے. د ټولونه اوچته څوکه د البرزغر دے چې د سمندر د مخ نه ۱۸۴۲۵ فټه لوړ دے.(پخوانو قصو کښې د دې غر په حقله مشهوره ده. چې دا د درستې دنيا نه چا پېره دے. او دومره لوړ دے چې اسمان ته نزدې شوے دے. او په دغه وخت کښې فقط يو مارغۀ چې سمېرغ نومېږي پورې وتے شي. د دې غرۀ نه اخوا ديوان او ښاپېرۍ اوسي)

**دقاف ښاپېرۍ** :- (ــــخا/شا+پې+رَ+ی)-[عپ تر-اس-مو]-د کوه قاف ښاپېرۍ-ډېره ښکلې-(په قېصو کښې وئيلے شي- چې کوه قاف نه په هغه خوا د ښاپېرو ملك دے).

**کوه قاف** :- (کو+ه ــــ)-[ف تر-اس-مذ]-د قاف غر-مجازاً ډېر لوے او لوړ غر.

**کوه قاف سورے کول** :- په کوه قاف کښې سرنګ جوړول-مجازاً-ډېر زيات سخت کار کول-ډېر ګران کار کول-لکه دا کار خو کوه قاف سورے کول دي.

**قافله** :- (قا+ف+لَ)-[ع-اس-مو-ج:لې]-کاروان-د ګڼو کسانو يا خلکو يو ځاے په (اوږد) سفر تلل-(چې په لاره کښې څۀ ښه بد ه پېښه شي نو چې د يو بل مدد وکړي).

**قافله باشي** :- (ــــبا+شِي)-[عف تر-اس-مذ]-د قافلې مشر- د قافلې سردار.

**قافله سالار** :- (ـــسا+لا+ر)-[عف تر-اس-مذ]-د قافلې مير-د قافلې مشر-
قافله باشي-مير كاروان.

**قاف گاه** :- (ـــگا+ه)-[عف تر-ظ]-د قافلې د كوزېدو او د كډو اچولو ځاے.

**قافيه** :- (قا+فِي+يَ)-[ع-اس-مو-ج:ئې/قوافي]- هغه يو شان لفظونه كوم چې
د يو نظم د شعرونو په اخر كښې بيا بيا د رديف نه اګاهو راوستے شي.
دا الفاظ پكار دي چې لفظاً يا په معنىٰ كښې د يو بل نه مختلف وي.
(اصلاً دا لفظ د "قفو" نه وتے دے چې معنىٰ ئې بيا بيا يا پرله پسې ده).

**قافيه بندي** :- (ـــبَ+نْ+دِيْ)-[عف تر-اس-مو]-په نظم كښې قافيې برابرول-
مجازاً: داسې شعرونه وئيل چې قافيې خولري-خو څه ښهٔ شاعرانه مطالب نهٔ
لري.

**قافيه پيما** :- (ـــپي+ما)-[عف تر-صف]-(۱) هغه شاعر چې داسې شعرونه
وائي چې د قافيې د لحاظه خو درست وي خو نهٔ خوئې مضمون ښهٔ وي.
نهٔ په كښې څهٔ شعري ښائست وي. (۲) هغه شاعر چې د خپل نظم يا غزل
وغېره د پاره د لرې لرې قافيې پېدا كوي-او استعمالوي.

**قافيه پيمائي** :- (ـــپي+ما+ئي)-[عف تر-اس-مو]-داسې شعر يا شعرونه
وئيل- چې د قافيې په لحاظ خو درست وي-خو نهٔ خوئې مضمون ښهٔ
وي-او نهٔ په كښې شعري ښائست وي. (۲) په نظم يا غزل وغېره كښې په
كوښښ سره (ډېرې) قافيې راجمع كول او استعمالول.

**قافيه تنګېدل** :- په نظم كښې د شعر د جوړولو د پاره قافيه نهٔ پېدا كېدل.
مجازاً: ښنتل-مجبوره كېدل-پاتې راتلل.

قافيه شوه سره تنګه

د زغملو نشته توان (خوشحال)

**قافيه سنج** :- (ـــسَ+ن+جْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-د قافيې د علم پوهان-د
قافيې په ښهٔ او بد پوهېدونكے.

**قاق** :- (قا+ق)-[ت-صف-مذ-مو:ه]-(۱) وچ-خشك. (۲) ډنګر-مانده-لاغر-
(اصلاً وچه كړې غوښې ته وائي- بيائې استعمال په برنو معنو كښې
شورو شهٔ).

**قاقا** :- (قا+قا)-[اس-صوت]-د كارغهٔ اواز-قاں قاں-(خصوصًا د غرئيز
كارغهٔ اواز)

**قاقا كول** :- (۱) قاں قاں كول- د كارغهٔ اواز كول. (۲) د ګڼو كسانو
شورجوړول- چې د هېڅا خبره په پوهه كښې نهٔ راځي.

**قاقله** :- (قا+قُ+لَ)-[ع-اس-مو]-غټ الاچي.

**قاقم** :- (قا+قُ+مْ)-[اس-مذ-ج: ان]-د (سوربونې) نيولې په شان يو ځناور چې د
ځرمنې نه ئې پوستين جوړېږي-سپين لمحے (ځينې وائي چې لكۍ ئې تل
توره وي)

**قاقم اندام** :- (ـــاَ+نْ+دا+م)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-سپينو اندامونو واله-
ښكلے-(قاقم سپين رنګ لري).

**قال** :- (قا+ل)-[ع-اس-مذ]-(۱) خبره- خبرې- ګفتګو- خبرې اترې-قول- وينا-
مقوله. (۲) د "حال" نقيض-صرف د خولې خبرې د نمائش ګفتګو-د خولې
لب جب.

**قال وقيل** :- (ـــ(لو)قِي+ل)-[عف تر-اس-مذ]-خبرې- بحث مباحثه.

كه كامل دي په جهان، هغه كسان دي

چې فارغ دي د دنيا لــه قال وقيــله (خوشحال)

**قالب** :- (قا+ل+بْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-سانچه- هغه فريم وغېره چې په كښې
خټه يا وِيلې شوے فلز (دات) واچولے شي نو د فريم په شان څيز په كښې
جوړ شي. (۲) مجازاً-بدن (چې د روح د پاره د قالب په مثال دے).
(۳) شكل-صورت.

**قالب كول** :- كوم څيز د جوړولو د پاره يا سمولو دپاره په قالب كښې اچول.
لكه: څپلۍ قالب كول.

**په قالب كښې اچول** :- (و ـــ قالب كول).

**قالبوتى** :- (قا+ل+بُو+تَ+ى)-[اس-مو]-هغه لوے تالے، په كوم كښې چې
كولال لوښي جوړوي.

**قالبي** :- (قا+ل+بي)-[عف تر-صف]-(۱) قالب سره تعلق لرونكے-قالب ته
منسوب. (۲) قالب واله. (۳) په قالب كښې جوړ كړے ياسم كړے.

**قالوابلٰي** :- [ع-حمله]-لفظي معنى- هغوي ووې چې هو! د قران پاك يو ايت ته
اشاره ده- په كوم كښې چې خداے تعالىٰ د ازل په ورځ د انسانانو نه
تپوس وُكړو. اَلَسْتُ بِرَبِّكُم؟ آيا زهٔ ستاسو پروردګار نهٔ يم؟ نو هغوي ټولو
ورله جواب وركړو چې بلى! (هو).

**قاليچه** :- (قا+لِي+چَ)-[ف-اس-مو-ج:چې]-وړوكے قالين-قالين.

**قالين** :- (قا+لِي+ن)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]-د وړۍ نه جوړ شوے (ګلدار) فرش
قالين-غالي-زلين.

سګ ته كه څوك واچوي فرشونه د مخملو

د رومي په مرداري پسې خوښ په قالين نهٔ شي (حافظ)

**قالين اودونكے** :- (ـــاُو+دُو+ن+كَے)-[فپ تر-اس-مذ-ج:كي]- هغه كس چې
قالينونه جوړ وي-قالينونه سازؤلو واله-قالين باف-قالين ساز.

**قالين باف** :- (ـــبا+ف)-[و ـــ قالين اودونكے)

**قالين بافي** :- (ـــبا+فِي)-[ف تر-اس-مو]-د قالينونو اودنه- قالينونه جوړونه-
قالين سازي.

**قالين سازي** :- (ـــسا+زِي)-(و ـــ قالين بافي)

**د قالين داودلو صنعت** :- د قالينونو د جوړولو صنعت-د قالين بافۍ صنعت.

**قام** :- (قا+م)-[اس-مذ-ج:ونه]-د "قوم" بدل شكل-اولس-قوم-وګړے.

**قام پرست** :- (ـــپَ+رَ+سْ+ت)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-د قوم پرستش
كوونكے-مجازاً قام ډېر زيات خوږ او عزيز ګڼونكے-قوم پرست- د خپل
قوم طرفداري اوېره كوونكے.

**قام پرستي** :- (ـــپَ+رَ+سْ+تِي)-[عف تر-اس-مو]-د قوم پرستش كؤنه-
مجازاً خپل قام ډېر زيات خوږ او عزيز ګڼلنه-د خپل قوم طرفداري اوېره
كونه.

**قام پرور** :- (ـــپَ+رْ+وَ+رْ)-[عف تر-صف مذ-مو:ه]-د قوم پالنه كوونكے.

**قام پروري** :- (ـــپَ+رْ+وَ+رِي)-[عف تر-اس-مو]-د قام پالنه-د خپل قام
طرفداري اوېره.

**قام شرمے** :- (ـــشَ+رْ+مے)-[عپ تر-صف]-هغه سړے چې د خپلې بد اخلاقۍ يا
نامردۍ يا د بل كوم پرېوتي كار په وجه د خپل قام د پاره د شرم سوب وي.

**د قام شرم** :- (ـــشَ+رَ+مْ)-[عپ تر-صف]-هغه سړے چې د خپلې بد اخلاقۍ
او نامردۍ له كبله قام شرموي-قام شرمے.

**قامت** :- (قا+مَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-قد-د بدن اوچتوالے-ونه-بر.

**قامت رعنا** :- (ـــرَ+عْ+نا)-[عف تر-صف]-ښكلے قد-ډولے قد.

**قامت كول** :- د نمانځه نه اول په امام پسې "قدقامت الصلوة" وئيل. (ځينې
خلك "اقامت" كول هم وائي)

**په قد قامت** :- (پَ+قَ+دْ ـــ)-يعنې د دنګوالي يا د اوچتوالي په لحاظ سره-په

ونه. لكه: فلانے په قدقامت مندرے دے؛

**قد قامت** :- (قَ+دْ—)-[عف تر-اس-مذ] -د دوارو لفظونو تقريبًا يو شان معنې دي. دوېم لفظ د تاكيد د پاره راځي-قد او اوچت والے-ونه-دړ.

**قاموس** :- (قا+مو+س)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/قواميس] -(۱) ژورسيند-ژور (ژور) درياب-سمندر-بحر. (۲) د عربۍ د يو مشهور لغت نوم دے چې محمد بن يعقوب فيروز پوري ليكلے دے. (۳) د پښتو د ځينو لغتونو نوم هم دے.

**قامي** :- (قا+مي)-[عف تر-صف] -قومي-قوم سره تعلق لرونكے-قوم ته منسوب.

**قانت** :- (قا+ن+تْ)-[ع-صف-مذ-م:ه] -(۱) فرمانبردار-د خدائے پاك حكم منونكے. (۲) د مؤنث په شكل كښې د زنانهٔ په نوم كښې راځي. (لكه: قانه)

**قان قان** :- (قا+ن+قا+ن)-[اس صوت] -د بطخې يا كارغهٔ اواز.

**قانع** :- (قا+ن+عْ)-[ع-اس/صف-مذ-ج: ان، (مو):ه] -قناعت كوونكے-صبر كوونكے-په خپل مالي حالت صبر كوونكے.

**قانع كول**:- په خپل قسمت يا مالي حالت وغيره- صابره كول.

**قانع كېدل** :- صابره كېدل-په خپل حالت يا قسمت صبر كول-د خپل موجوده مال دولت وغيره نه زيات نهٔ غوښتل.

**قانغوزک** :- (قا+نْ+غو+زَ+كْ)-[اس-مذ-ج:ان] -گونگټ-مرغيانه-غوزاړے.

**قانون** :- (قا+نُو+ن)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/قوانين] -(۱) قاعده-دستور-تاكلے طور طريقه-ضابطه-شرع-توره-(۲) د يو مشهور ساز نوم دے. (۳) د بوعلي سينا تصنيف كړے د طب يوناني يو مشهور كتاب.

**قانون پاس كول** :- د قوانينو د جوړولو د مجلس يو قانون منظورول.

**قانون دان** :- (—دا+ن)-[عف تر-اس/صف-مذ-ج:ان، (مو):ه] -په قانون پوهېدونكے-د قانون پوهان-دود پوهان.

**قانو داني** :- (—دا+ني)-[عف تر-اس-مو] -د قانون په علم پوهه-قانون پوهنه.

**قانون ساز** :- (—سا+ز)-[عف تر-اس/صف-مذ-ج:ان، (مو):ه] - قانون جوړوونكے.

**قانون ساز مجلس** :- (— مَ+ج+لِ+سْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]- هغه مجلس يا ټولے- كوم چې د يو ملك يا د يو ملك د كومې برخې (صوبې) د پاره قوانين جوړوي.

**قانون ساز اسمبلي** :- (—اِ+س+مْ+ب+لِي)-(و——— قانون اسمبلي)

**قانون شرع يا شرعي** :- (— شَ+رَ+عَ يا شَ+رْ+عي)-[عف تر-اس-مذ] -هغه قانون كوم چې د اسلامي شرعې مطابق وي. (د پخواني انگريزي قانون په مقابله كښې)

**قانون شكن** :- (—ش+ك+نْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه] -قانون ماتوونكے-د يو ملك يا د ادارې د مقرره قانون نه خلاف عمل كوونكے.

**قانون شكني** :- (—ش+ك+ني)-[عف تر-اس-مو] - قانون ماتونه-د يو ملك يا د كومې ادارې د مقرره قانون نه خلاف عمل كول.

**قانون گو(ے)** :- (—گو+(ے))-[عف تر-اس-مذ-ج:يان] -د محكمه مال يو عهدېدار-گرداور-د پټواري د پاسه يوه عهده.

**قانون نافذ كول** :-

**قانون جاري كول** :- په يو ملك يا اولس كښې نوے قانون په عمل كښې راوستل.

**قانون نامه** :- (—نا+مَ)-[عف تر-اس-مو-ج:مې] -د يو ملك يا د ادارې د قاعدو قوانينو كتاب.

**قانونًا** :- (قا+نُو+نَ+نْ)-[ع-تف] -د قانون مطابق-د قانون له رويه-د قانون تر لاندې.

**قانوني** :- (قا+نو+ني)-[عف تر-اس-مو] -(۱) د قانون سره تعلق لرونكے-قانون ته منسوب. (۲) د قانون مطابق. (۳) هغه سړے چې په هره خبره كښې كوم خاص دستور ترمخه ساتي-مجازاً ډېر بحث كوونكے.

**قانوني چاره جوئي كول** :- د خپلې جگړې يا تنازعې وغيره فيصله په عدالت كښې د قانون مطابق غوښتل په عدالت كښې دعوىٰ كول.

**قانوني حكومت** :- (—حُ+كُو+مَ+تْ)-(عف تر-اس-مذ-ج: ونه] -هغه حكومت چې د يو ملك د قوانينو مطابق په اقتدار كښې راغلے وي. (په زور وغيره ئې حكومت نهٔ وي ترلاسه كړے).

**قانوني كول** :- كوم كار يا عمل د توره قانون تر لاندې راوستل-قانون سره مطابقت كول.

**قانون قوه لرل** :- د يو ملك يا د ادارې د قوانينو مطابق طاقت لرل.

**قانون مجلس** :- (—مَ+جْ+لِ+سْ)-(و——— مجلس قانون ساز)

**قانون مشاور** :- (—مُ+شا+وِ+رْ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان، (مو):ه] - هغه كس چې چاله د قانون مطابق د كار كولو مشورې وركوي.

**په قانون شكل** :- د قانون له رويه-د قانون مطابق.

**قانونيت** :- (قا+نُو+نِی+يَ+تْ)-[ع-اس-مذ] -(۱) د قانوني بودلو حالت (عمومًا په نفي كښې استعمالېږي- لكه: نن صبا لاقانونيت روان دے). (۲) قانوني حېثيت.

**قاه قاه** :- (قا+ه+قا+ه)-[ف-اس-صوف] -د خندا اواز-برق برق- خټ خټ كټكے-كټهار.

**په قاه قاه خاندل** :- په قهقهه خاندل-په برق برق خندل-په خټ خت خاندل-په كټهار خاندل.

**قاهر** :- (قا+هِ+رْ)-[ع-اس-صف-مذ-ج: ان، (مو):ه] -(۱) طاقت لرونكے-زور لرونكے-زوره ور-غالب. (۲) قهر كوونكے-قهر واله-غمه ناك-غضب ناك.

**قاهره** :- (قا-هِ-رَ)-[اس-مع]د يو مشهور ښار نوم-چې د مصر دارالحكومت دے.

**قاهره** :- (قا+هِ+رَ)-د "قاهر" تانيث دے-زوروره- زور واله-غالبه.

**قائد** :- (قا+ئِ+دْ)-[ع-اس-مذ-ج:ان] -(۱) وړاندې تلونكے-د ړندو عصا- لار ښودونكے-راهنما. (۲) د لښكر يا دقام مشر-سردار-سر غندوے-سر غندرے. (۳) د "دب اكبر" په ستورو كښې د ټولو نه وروستنے ستورے.

**قائداعظم** :- (—اَ+عْ+ظَ+مْ)-[عف تر-اس-مذ] -(۱) لوے مشر-لوے رهنما (۲) د پاكستان د يو ستر مشر او راهنما محمد علي جناح لقب دے-چې خپل قام ورله وركړے دے (محمود علي جناح)

**قائزه** :- (قا+ئِ+زَ)-[اس-مو-ج: زې] -قېزه-واگه-لگام.

**خولې ته قائزه اچول** :- خولې ته واگه اچول-خولهٔ په واك كښې كول-خو له په قابو كښې كول-بې واكه خبرې نهٔ كول.

**قائق** :- (قا+ئِ+قْ) يا (قا+ئِ+قْ)-[ع-اس-مذ] -وړه كشتۍ-ماكو.

**قائل** :- (قا+ئِ+لْ يا (قا+ئِ+لْ)-[ع-اس-مذ-ج:ان] -(۱) قول كوونكے- ويونكے- خبره كوونكے. (۲) منونكے-تسليمونكے-اقرار كونكے. لكه: زهٔ د تناسخ قائل نهٔ يم!

**قائل كول** :- د كومې خبرې يا د كار په حقله په منلو مجبورول-د گناه يا د جرم وغيره په اقرار مجبورول-په بحث كښې خپله خبره په چا منودل.

**قائله** :- (قا+ئِ+لَ يا (قا+ئِ+لَ)-(۱) د قائل ثانيث دے. (۲) ځينې وخت د

مذکر د پاره هم راشي. (په دے صورت کښې د "قائل" بدل شکل دے)

**قائله کول** :- د قائل کول تانيثي صورت دے- خو ځينې وخت د مذکر د پاره هم راشي. لکه: تهٔ ما نهٔ شې قائله کولے!

**قائله کېدل** :- قائل کېدل-منل- تسليمول-اقرار کول- (د مذکر مؤنث دواړو د پاره راځي)

**قائلول** :- (قا+ئے+لَ+ؤ+لْ)-[مص]-(و____ قائله کول)

**قائلوونکے** :- (قا+ئے+لَ+وُو+نْ+کَے)-[اس فا-مذ-ج:کي)-قائل کوونکے-منونکے-تسليم کوونکے.

**قائم** :- (قا+ئے+مْ) يا (قا+ئ+مْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه)-(۱) نېغ ولاړ- ولاړ

يا صائم په ورځ قائم په شپه وے په محراب کښې

هر سحر ژړا زاري مې کړلے دعا خوان وے (حافظ)

(۲) په ځاے کلك-ټينګ-مضبوط. (۳) اودرېدونکے-ولاړېدونکے.

**قائم الزمان** :- (— (مُ+زْ) زَ+ما+نْ)-[ع تر-اس-مذ]-په شيعه ګانو کښې د امام نائب.

**قائم اوسېدل** :- کلك اوسېدل-په خپل ځاے يا خبره وغېره ټينګ اوسېدل-مضبوط اوسېدل.

**قائم بالذات** :- (—ب+ذْ+ذَا+ت)-[ع-تر-صف]-(۱) هغه څيز چې په خپل ځان قائم او برقرار وي-په بل کوم څيز اړه نهٔ لري- واجب الوجود. (۲) جوهر(۳) خپلواکه- بېخي ازاد-خود مختاره.

**قائم بالغير** :- (—بِ-لْ-غَے-رْ)-[ع تر-صف]-(۱) هغه څيز چې هستي يا وجود ئې د بل کوم څيز محتاجه وي. (د قائم بالذات "نقيض" دے). (۲) عرض. (۳) محتاج-بل ته اړ.

**قائم ګنج** :- (—ګَ+ن+جْ)-[اس-مع]-د فرخ اباد په ضلع کښې د پښتنو د يو کلي نوم- چې تحصيل هم دے-قائم خان بنګښ اباد کړے ؤ.

**قائم مزاج** :- (— م+زا+ج)-[عف تر-صف مذ-مو: ه)-هغه کس چې مزاج ئې هر وخت يو شان وي- چې په خپله خبره وغېره همېش له ټينګ اوسي-مستقل مزاج.

**قائم مقام** :- (—مَ+قا+م)-[عف تر-صف مذ-مو:ه]-د بل په ځاے قائم کېدونکے-د بل په ځاے مقام يا درجه نيوونکے.

يو د بل په ځاے کښېني د دنيا دود دے

زهٔ خوشحال قائم مقام يم د جنون

**قائم خان** :- (قا+ئے+م+خا+ن)-[اس-مع]-(—۱۸۴۸) قائم جنګ- د محمد خان بنګښ زوے او د فرخ اباد نواب ؤ. او هلته پښتنو سره په جنګ کښې ووژلے شهٔ-په هند کښې قائم خاني چونه د دهٔ په نوم مشهوره ده-د قائم ګنج کلے (هند) دهٔ اباد کړے ؤ.

**قائمول** :- (قا+ئے+مَ+ؤ+لْ)-[مص]-(۱) ودرول-په ځاے ولاړول. (۲) کلکتيا راوستل-ټينګار راوستل. (۳) جوړول- بنياد کېښودل.

**قائمونه** :- (قا+ئے+مَ+ؤ+نَ)-[حمص]-قائم کوٌنه- ودرونه- بنياد کېښودنه-جوړونه.

**قائموونکے** :- (قا+ئے+مَ+وُو+ن+کَے)-[اس فا-مذ-ج:کي)-قائم کوونکے-ودروونکے-بنياد کېښودونکے.

**قائمه** :- (قا+ئے+مَ)-د "قائم" تانيث دے.

**قائمه زاويه** :- (—زا+وِي+يَ)-[عف تر-اس-مو-ج: ئې]-د ۹۰ درجو زاويه.

**قائمېدل** :- (قا+ئے+مې+د+لْ)-[مص]-قائم کېدل-کلك ودرېدل-ودرېدل-په ټينګار کېدل- جوړېدل-استوار کېدل.

**قائمېدنه** :- (قا+ئے+مې+د+نَ)-[حمص]-قائم کېدنه- ودرېدنه-جوړېدنه-بنياد کېښودلے کېدنه.

**قائمېدونکے** :- (قا+ئے+مې+دُو+ن+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کې)-قائم کېدونکے-ودرېدونکے- جوړېدونکے.

**قب** :- (قُ+بُ)-[اس-مذ-ج:ونه]-د هوار ځاے په مېنځ کښې بهر ته وتې برخه-په ملاکښې بهر ته وتې برخه-د ملا کوږ والے-د اوښ په ملاکښې يا د غوي د اوږو په مېنځ کښې بهر ته وتې ځاے-کوهان.

**قب** :- (قُ+بْ (ب))-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(و____ قبه)

**قبا** :- (قَ+ب)-[ع-اس-مو-ج:ګانې/وې]-لويه چوغه-غرکه.

**قبا کول** :- شلول- پاره پاره کول

**قباچه** :- (قَ+با+چَ)-[ف-اس-مؤ]-د "قبا" اسم تصغير-وړوکے قبا-وړه چوغه.

**قباحت** :- (قَ+با+حَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) بدي- ناکارتيا-خرابي-بسره. (۲) نقص-عېب. (۳) ګرانتيا-دقت-دشواري.

**قباد** :- (قَ+با+د)-[اس-مع]-د ايران يو پخوانے زوره ورباد شاه.

نهٔ جمشېد ؤ نهٔ ئې جام ؤ

نهٔ قباد ؤ نهٔ کسرا (خوشحال)

**قباله** :- (قَ+با+لَ)-[ع-اس-مو-ج:لې]-په بيعه اخستلو يا د ملکيت بودلو سند-کباله-قباله. (لغوي معنې ئې قبوليت ده)

**قباله اخستل** :- (۱) د کور يا د جائداد وغېره په حقله د چانه ليکلے کاغذ اخستل. (۲) په کور يا جائداد وغېره قبضه کول.

**قباله نويس** :- (—نَ+وِي+س)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان]-د قبالے کاغذ ليکونکے-هغه سړے چې سرکاري طور سره-د کورونو خرڅ او بيع کاغذونه (اشټامونه) ليکي-اشټام نويس.

**قبائح** :- (قَ+با+ئے+ح)-د "قبيحه" جمع ده. (و____ قبيحه)

**قبائل** :- (قَ+با+ئے+لْ)-[ع-اس-ج]-د "قبيله" جمع ده. قبيلې-قامونه قومونه-اولسونه.

**قبائلي** :- (قَ+با+ئے+لِي)-[عف تر-صف]-قبائلو سره تعلق لرونکے-قبيلوته منسوب.

**قبائلي علاقه** :- (— عَ+لا+قَ)-[اس-مو-ج:قې)-هغه علاقه يا سيمه چې په کښې ازاد قبائل اوسي.

**قبح** :- (قُ+بْ+ح)-[ع-اس-مو-ج:حې]-ناکاروالے-بدي-عېب-نقص.

**قبر** :- (قَ+بَ+رْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) ګور-هغه ځاے چې په کښې کوم مړ شوے بني ادم ښخ وي يا مړے ښخولے شي. (۲) مجازاً: تنګ ځاے.

**قبر ته نهٔ وړل ځان سره** :- عموماً د مال دولت په حقله وايه شي چې دا مال دولت به هم دلې په دنيا کښې پاتې کېږي.

**قبر ته وړل ځان سره** :- تر مرګه پورې بلکې په قبر کښې تر ښخېدلو پورې ياد لرل. لکه: دا ارمان به ځان سره قبر ته يوسم.

**قبر کن** :- (—کَ+نْ)-[عف تر-اس-مذ]-(و___ قبر کند)

**قبر کند** :- (—کَ+نْ+د)

**قبر کندے** :- (—کَ+نْ+دَے)-[عپ تر-اس-مذ-ج:دي]-هغه کس چې د قبر د کنستلو کار کوي- قبر کنستلو واله-ګورکن.

**قبر ګاه** :- (—ګا+(ه))-(و____ قبرستان)

**د قبر تعويذ** :- (—تَ+عْ+وِي+ز)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه]-د کاڼونه جوړ شوے هغه صندوق شان کوم چې د قبر د پاسه جوړولے شي. لکه: د

رحمان بابا او د خوشحال خان د قبرونو تعویذونه د افغانستان له طرفه رالېږلي شوي وو.

**دقبر نه را پاڅېدل** :- (۱) د مړو په شان شکل جوړول-ډېر زیات انده کېدل. (۲) بیا را ژوندے (جوندے) کېدل. لکه: که ستا نیکۀ هم د قبر نه را پاسي نو هم......

**قبرس** :- (قُ+بْ+رُ+سْ)-[اس-مع]-د ترکو د ملك نه لوئیدیزته په بحیره روم کښې یوه جزیره-سائپرس.

**قبرستان** :- (قَ+بْ+رِ+سْ+تا+ن)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) ګورستان- هغه احاطه چې مړي په کښې ښخولے شي- مقبره. (۲) هغه ځاے چې په کښې ببخي چُپه چپیاوي.

**قبرسي** :- (قُ+بْ+رُ+سِي)-[اس-مع]-(۱)د قبرس د جزیرې اوسېدونکے. (۲) د قبرس په جزیره کښې اوسېدونکے. (۳) د قبرس د جزیرې د خلکو ژبه (ځبه).

**قبرص** :- (قُ+ب+رُ+سْ)-[اس-مع]-د ترکي نه قبلې طرف ته یوه جزیره چې نیمه د یونانیانو اونیمه د ترکو په قبضه کښې ده. سائپرس.

**قبض** :- (قَا+ب+ضْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/قبوض]-(۱) نیول- بندېدل. (۲) په قبضه کښې راوستنه. (۳) لوے بول بندېدل یا نۀ راتلل. (۴) د "بسط" ضد- تنګي-دل تنګي. (۵) د صوفیانو په اصطلاح کښې هغه حالت چې په صوفي باندې د الله پاك انوار او تجلۍ بندې شي. (۲) د عروض په علم کښې د یو زحاف نوم- چې په کښې پنځم ساکن رکن وغو ځولے شي. لکه د مفاعیلن نه مفاعلن.

د بې نیازو مجلس قبضِ دل تنګي ده
د نشاط بساط نیازمنو ته غوړېږي (حافظ)

**قبض کول** :- (۱) ځان سره ساتل. (۲) په قبضه کښې راوستل. (۳) ساه یا روح اېستل. (۴) ګېډه سختول- لوے بول- کلکېدل یا نۀ راتلل (خج په "کول" دے)

**قبض الوصول** :- (— (ضُ+لْ وُ+صُو+ل)-[ع تر-اس-مذ]-د وصول کولو رسید- هغه کتاب، فارم یا رجسټر چې په کښې د تنخواه د تقسیمولو په وخت د ملازمانو نه د ستخطونه اخستے شي.

**قبض وبسط** :- (— (ضو) بَ+سُ+ط)-تنګېدنه او کشاده کېدنه-د صوفیانو په اصطلاح کښې ځیني وخت عبادت ته زړۀ کېدنه-ځیني وخت نۀ کېدنه.

**روح قبض کول** :- روح اېستل-ساه اباسل-مجازاً: مړکول-(خصوصًا د عزرائیل ؑ فرښتې په حقله ویلے شي)

**قبضه** :- (قَ+بْ+ضَ)-[ع-اس-مو-ج: ضې]-(۱) په لاس کښې راوستنه، په قابو یا اختیار کښې راوستنه یا لرنه. (۲) لاستے-موټے-(د توري چړې وغېره). (۳) په یو موټي کښې راتلونکے څیز. لکه: یو قبضه رېره. (۴) د دروازې تنبې سره لګېدونکے اله- چې یو طرف ئې په چوکاټ کښې لګېدلے وي- او بل طرف ئې د تنبې ژۍ (جۍ) سره- دغه تنبه د دې په زور ټینګه وي- او د دې په وجه لرې کېږي پورې کېږي.

**قبضه کول** :- کوم ځاے یا څیز په خپل واك اختیار کښې راوستل-(خصوصًا په داسې حالت کښې چې بل له هغې ځایه وغېره ووېستے شي) لکه: بابر باچا په ډیلي قبضه وکړه.

**قبضه ماتول، دچا** :- کوم څیز (زمکي-کور وغېره) په زور په خپل لاس کښې راوستل- او د بل لاس ترې وښکل.

**پـه قبضـه کښې راوستل** :- پـه خپـل لاس کښـې راوسـتل-پـه خپـل قـابو کښـې راوستل-د لاس لاندې کول-په خپل واك اختیار کښې راوستل.

**قبضي** :- (قَ+بْ+ضِي)-[عپ تر-صف]-قبض پېدا کوونکے-هغه خوراك یا د خوراك څیز چې قبض پېدا کوي-قبض پېدا کوونکې دوائي.

**قبضې** :- (قَ+بْ+ضې)-(۱) د "قبضه" جمع. (۲) د "قبضه" اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل.

**له قبضې وتل** :- له اختیاره وتل-په قابو کښې نۀ پاتې کېدل. لکه: زلمے زوے مې اوس د قبضې نه وتے دے.

**قبط** :- (قُ+بْ+ط)-[اس-مع-مذ-ج:یان]- (۱) د مصر پخواني اوسېدونکي- قبطي. (۲) د حضرت نوح علیه السلام د نمسي نوم- د کوم اولاد چې د مصر اصل اوسېدونکي دي.

**قبطي** :- (قُ+بْ+طِي)-[اس-مع-مذ-ج:ان]-د مصر پخوانے اوسېدونکے- د مصر پخوانے اصل وګړے-قبط-د فرعون قوم.

زمانه په خلکو هسې ازمېښت کا
چې یوسف د قبطیانو از خرید شۀ (خوشحال)

**قبطیه** :- (قِ+بْ+طي+یَ)-[اصف-مو]-د "قبطي" مؤنث دے.

**قبل** :- (قَ+بْ+ل)-[ع-اس-ظ]-وړاندې-پخوا-د مخه-پخوا-لرغون-ړومبے.

**قبل از وقت** :- (—اَ+زْ+وَ+قْ+ت)-[عف تر-ظ]-د مقرره وخت نه اګاهو-د کوم کار د معین وخت نه اول.

**قبل التاریخ** :- (—(لَ+تْ)+تا+رِی+خ)-[ع تر-اس-ظ]-د تاریخ نه وړاندې-د هغې زمانې نه اګاهو چې تاریخ په لیك کښې راغلے دے-هغه زمانه چې تاریخ ئې نۀ دے لیکلے شوے.

**قبل الدخول** :- (—(لُ+دْ) دُ+خُو+ل)-[ع تر-ظ]-د دخول کولونه اول-ښځې سره کور والے کولونه اګاهو. لکه: قبل الدخول طلاق ورکول.

**قبل المیلاد** :- (—(لُ+لْ)+مي+لا+د)-[ع تر-اس-ظ]-د حضرت عیسی علیه السلام د پېداوښت نه اګاهو-د عیسائیانو کېلنډر-د عیسی علیه السلام د پېداوښت نه شوروکېږي-چې ورته عیسوي یا میلادي سن وائي-د دې نه پخوانۍ زمانې حساب هم د دغه وخت نه کولے شي. لکه د عیسی علیه السلام نه دومره کاله اګاهو-دې ته قبل المیلاد وائي-او مختصر طور سره "ق-م" لیکلے شي.

**قبل مسیح** :- (—مَ+سِي+ح)-]عف تر-ظ]-د مسیح یعني د عیسې علیه السلام د پېداوښت نه اګاهو. لکه: درې سوه کاله قبل مسیح. (دا عمومًا ۳۰۰ ق-م لیکلے شي)

**ما قبل** :- (ما —)-[ع تر-صف]-په عبارت کښې چې کوم لفظ یا حرف چې د کوم خاص لفظ یا حرف نه وړاندې راغلے وي. (د ما بعد په مقابله کښې)

**قبل** :- (قَ+بَ+لْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]-راګېر-ننښتے-ګرفتار.

سترګې دې که وروځې دې که زلفې که اوربل دے
څو تورې بلادې چې مې زړۀ په کښې قبل دے (خوشحال)

**قبل کول** :- راګېرول-ننښلول-ګرفتارول.

**قبل، قبله** :- (قَ+بَ+لَ)-[حرف]-باعث-سبب-وجه-کبل. لکه: له دې قبله ____.

**قبل** :- (قِ+بَ+لْ)-[ع-اس]-(۱) اړخ-طرف. (۲) اثر-زور-طاقت.

**قبل** :- (قُ+بُ+لْ)-[ع-س-مذ-ج:ونه]-وړاندینۍ حصه-د ښځې پټ اندام-کُس- فند.

**قبلا** :- (قَ+بْ+لَ+تَې+ن)-[ع]-دوه قبلې- یعني بیت المقدس چې پخوانۍ قبله وه. او خانه کعبه چې د حضور صلی الله علیه وسلم په وخت قبله شوه.

**قبلول** :- (قَ+بْ+لَ+ؤ+لْ)-[مص]-منل- تسلیمول- منظورول.

چې په چا باندې مېن ئې قبلوه ئې
سل نازونه، سل ناسازې، سل جفا (خوشحال)
(دا اصلاً د "قبولول" بدل شکل دے)

**قبلوونکے** :- (قَ+بْ+لَ+وُو+ن+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]-منظوروونکے-منونکے.

**قبله** :- (قِ/قِ+بْ+لَ)-[ع-اس-مو-ج:لې]-(۱) خانه کعبه-په مکه معظمه کښې هغه خاص کوټه، چې د دنيا مسلمانان په خپلو نمونځونو کښې ورته مخ کوي. (۲) د پښتونخوا نه دا کوټه مغرب طرف ته ده. ځکه پښتانه مغرب طرف ته قبله وائي-(خو دغه قبله د نورو ملکونو نه قطب يا سهيل يا نمر خاتۀ طرف ته هم ده).

**قبله د حاجات** :- (ـــ دَ+حَا+جا+ت)-[عپ تر-صف]- حاجتونه پوره کوونکے-حاجت روا.

ښائي دا که زۀ خپل ياروته سجده کړم
هغه يار زما قبله دے د حاجات (رحمان)

**قبله عالم** :- (ـــ عا+ل+مْ)-[عف تر-اس-مذ]-د دنيا قبله- د دنيا سجده ګاه يو لقب دے چې د بادشاهانو د پاره استعالولے شي- يا د مشرانو بزرګانو مخاطب کولو د پاره استعمالېږي.

**قبله ګاه** :- (ـــ ګا+ه)-[ف تر-اس-مذ]-(۱) د قبلې ځاے-د سجدې ځاے-کعبه. (۲) مجازاً: احتراماً پلارته وئيلے او ليکلے شي.

**قبله نما** :- (ـــ نُ+ما)-[عف تر-اس-مذ]-د قبلې ښوونکے-هغه اله چې د نمانځه وغيره د پاره د قبلې صحيح لور ښائي.

زما زړۀ قبله نماشۀ نۀ جار وزي
وبل لورته ستا د وروځيو له محرابه (خوشحال)

**مخ په قبله**:- (م+خْ+پَـــ)-[عپ-ظ]-هغه کوټه يا عمارت وغيره چې مخه ئې د قبلې په لور وي-قبله رو.

**قبلې** :- (قِ+بْ+لې)-(۱) د "قبله" جمع. (۲) د "قبله" اضافي او مجروري وغيره (متغير) شکل.

**قبلې ته شين دے** :- [جمله]-(۱) د قبلې طرف ته په اسمان کښې وريځ نشته-د باران هيڅ اثار نشته. (۲) مجازاً: د کوم څيز د نيشتيا د اظهار د پاره ئيلے شي-يا د طمعې دنۀ بودلو په حقله وئيلے شي.

**پښې قبلې ته کول** :- غلط کار کول-ګناه کول.

**مخ قبلې ته کول** :- (۱) قسم خوړل-سوګندي کېدل. (۲) نمونځ کول.

**قبلئيز** :- (قِ+بْ+لَ+ی+زْ)-[اس ظ-مذ-مو:ه]-د قبلې د طرف سره تعلق لرونکے-د قبلې د ډډې-د قبلې د طرف.

**قبلئيز ملکونه** :- (ـــ مَ+لْ+کُو+نَ)-د قبلې (مغرب) د طرف ملکونه-مغربي ملکونه-د يورپ ملکونه.

**قبلئيزه** :- (قِ+بْ+لَ+ئ+زَ)-[اس-ظر-مو-ج:زې]-د "قبلئيز" تانيث دے.

**قبلئيزه علاقه** :- (ـــ عَ+لا+قَ)-[اپ تر-اس-ظر-مو-ج:قې]-هغه علاقه يا سيمه کومه چې د ويونکي نه قبلې طرف ته وي.

**قبور** :- (قُ+بُو+ر)-[ع-اس-ج]-د "قبر" جمع ده.

**اهـل قبـور** :- (اَ+هـْ+لِ ـــ)-[عف تر-اس-ج]-د قبرونو خلک-د قبرونو اوسېدونکي مړي- مردګان.

**قبول** :- (قَ+بُو+ل)-[ع-صف-مذ-مو:ه]-منظور- منلے-تسليم.

**قبولول** :- (قَ+بو+لَ+ؤ+لْ)-[مص]-قبلول- منظورول-منل-تسليمول-منظوري ورکول.

**قبولونه** :- (قَ+بُو+لَ+ؤ+نَ)-(و ـــ قبلونه)

**قبولوونکے** :- (قَ+بُو+لَ+وُو+نْ+کَے)-(و ـــ قبلوونکے).

**قبوله** :- (قَ+بُو+لَ)-(۱) د "قبول" تانيث دے. (۲) قبول شوے-مقبول. لکه: اے د خدا اے په در قبوله!

**قبولېدل** :- (قَ+بو+لې+د+لْ)-[مص]-قبلېدل-قبول کېدل-منظورېدل-منلے کېدل.

**قبولېدنه** :- (قَ+بو+لې+د+نَ)-(و ـــ قبلېدنه).

**قبولېدونکے** :- (قَ+بُو+لې+دُو+ن+کَے)-(و ـــ قبلېدونکے).

**قبه** :- (قُ+بْ+بَ)-[ع-اس-مو-ج:بې]-ګنبد، ګنبت.

د ښېوے اوربل ئې چتر، جبين تخت دے
پرې د پاسه د سرو ټيک قبه زري کا (حافظ)

**قبې** :- (قُ+بَ+ئ)-د "قبے" تانيث دے.

**قبے** :- (قُ+بَے)-[صف-اس- مذ-مو-ج:بي/ی ان]-قب واله-هغه کس چې په ملا کښې ئې کوږوالے وي-کبړے.

**قبيح** :- (قَ+بي+ح)-[ع-صف-مذ-مو:ه]-قباحت لرونکے-نقص يا عيب لرونکے-عيب جن-ناکاره.

**قبيح المنظر** :- (ـــ حُ+لْ+مَ+نْ+ظَ+رْ)-[ع تر-صف مذ-مو:ه]-بدشکله-بدصورته-بد ښکاريدونکے.

**قبيل** :- (قَ+بي+ل)-(۱) (و ـــ قبيله). (۲) قسم-نوع-ډول. لکه: د دې قبيل سوالونه.

**قبيله** :- (قَ+بي+لَ)-[ع-اس-مو-ج ـــ لې/قبائل]-(۱) ګڼ خاندانونه چې د يو نيکۀ اولاد وي. (۲) د يو نسل ګڼ ټبر چې يو ځاے اوسي.

**قبيله دار** :- (ـــ دا+ر)-قبيلې واله-د لوے ټبر واله-د قبيلې يو غړے.

**قام قبيله** :- (قا+م ـــ)-[عپ تر-اس-ج:لې]-قوم او قبيله-هغه اولس چاسره چې ځوك نسلاً تړلے وي.

**قبيلوي** :- (قَ+بي+لَ+وي)-[عف تر-صف]-د قبيلې متعلق- قبيلې ته منسوب.

**قبيلوي اختلافات** :- (ـــ اِ+خْ+ت+لا+فا+ت)-[عپ تر-اس-مذ]- هغه اختلافات کوم چې ځيني قبيله يا قبيلې، ځينو نورو قبيلو سره لري-د قبيلو په خپله کښې مخالفتونه-يا مختلفي رائې لرنه.

**قبلوي رواجونه** :- (ـــ رِ+وا+جُو+نَ)-[عپ تر-اس-ج]-هغه دود دستور کوم چې قبائلو سره مخصوص وي.

**قبيلي** :- (قَ+بِي+لي)-[عف تر-صف]-قبيلې سره تعلق لرونکے-قبيلې ته منسوب-قبيلوي.

**قبيلې** :- (قَ+بي+لې)-(۱) د "قبيله" جمع. (۲) د "قبيله" اضافي يا مجروري وغيره (متغير) شکل.

**قپ** :- (قَ+پْ)-[صف مذ-مو:ه]-پرانستے-ويړ-کولاؤ.

**قپان** :- (قَ+پا+نْ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]-لويه تله-دړ.

**قپې** :- (قَ+پَ+ی)-[صف-مو]-پرانستې-کولاؤ-ويړه-کپې. لکه: قپې خولۀ ئې نيولې ده.

**قت** :- (قَ+تْ)-[اس-مذ-ج:ونه]-(۱) قطار. (۲) تهه.

**قت په قت** :- (ـــ پ+قَ+تْ)-(۱) قطار په قطار-په درست قطارونو کښې. (۲) تهه په تهه-د يو بل د پاسه.

**قت کول** :- په قت يا قتونو کښې سمول.

**قت** :- (قُ+تْ)-[اس-مذ-ج:ونه]-ترخ-بغل.

**په قت کښېنول** :- په ترخ کښېنول-په ترخ کښېنول.

**قت** :- (قُ+تْ)-[اس-مذ]-په کاڼي وغيره کښې وړوکے شان ډوُغل.

**قت کاڼے** :- (---کا+ن+ړے+ن)-[اس-مذ-ج:نې]-(۱) د هډوکي يا کاڼي په شان سخته شوې خاوره-چې قتې قتې (سوري سوري) وي. په ځينو علاقو کښې ډېر مونده شي-قرت کاڼے. (۲) سنګريزه-د کاڼي وړه شان ټکړه.

**قت کورے** :- (---ک+و+ړے)-[اپ تر-اس-مذ-ج: ړي]-د مېزري وغيره نه جوړه شوې هغه تېلۍ. يا کڅوړه چې زميندار (يا ترکاڼ) په کښې خپل واړۀ اوزارونه کښېږدي.

**قتال** :- (ق+تا+ل)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-جنګ-لړائي- وينې تويونه جدال.

**قتاله** :- (ق+تْ+تا+لَ)-[ع-اس-مو-ج:لې]-(۱) ډېر قتل کوونکې-ډېر قتلونه کوونکې (ښځه). (۲) معشوقه- محبوبه.

برندې سترګې ئې خونريز فتنه انګېزې

په ښو زړونه پېښې هر دم قتاله (حافظ)

**قتل** :- (قَ+ت+لْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-وژله-وَجله-وژنه- خون-مړکونه.

**قتل عام** :- (---عا+م)-[عف تر-اس-مذ]-(۱) د عامو خلکو قتل-پخواني وختونو کښې به په جنګ کښې چې غالب باچا به په قهر شۀ-يا انتقام به ئې اخستۀ نو د عام د خاص د قتلولو حکم به ئې ورکړ- چې نر ښځې، واړۀ زاړۀ څوک چې په مخ له ورتلل قتل به کړے شۀ. (۲) ډېر زيات مرګ ژوبله يا زور ظلم.

چې خدمت د حاکم کا خلاصے ئې نۀ وي

رعيت په لږ ګناه له قتل عامه (خوشحال)

(۳) د عام اولس قتل-د فوځيانو او لښکريانو سره د عام ښهريانو قتلونه.

**قتل عمد** :- (---عَ+م+دْ)-[عف تر-اس-مذ]-ارادتًا قتل-په نيت او اراده سره قتل-په قصد سره قتل.

**قتل ګاه** :- (---ګا+ه)-[عف تر-اس-ظر]-(۱) هغه ځاے چرته چې قتل يا قتلونه کولے شي. (۲) هغه ځاے چرته چې مجرمان وژلے يا پانسي کولے شي.

**قتل ګړ** :- (---ګ+ړْ)-[اس-مع]-د سوات بونير په علاقه کښې يو ځاے چرته چې د پښتنو او د پېرنګيانو تر مېنځه سخت جنګ شوے ؤ. او ډېره زياته مرګ ژوبله پکښې شوې وه. او ډېر پېرنګيان او د هغوي لښکر په کښې وژلے شوے ؤ. ځکه د دغې ځاے نوم قتل ګړ مشهور شۀ.

(چار بېته)

راغلۀ غازيان د فيرنګي په دغه ګړ باندې

اوړي قتل ګړ باندې (اکبر شاه)

**قتلان** :- (قَ+تْ+لا+ن)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]-قتل-ډېر قتلونه-ډېر وژله (وجله)

**قتلان جوړول** :- (۱) ډېر قتلونه- وژله کول. (۲) ډېر زيات ظلم زور کول.

**قتلان کول** :- ډېر زيات قتلونه کول-ډېر خلک وژل (وجل)

مرګه ستا علاج که شوے په هر څۀ وکړے

چې قتلان کړے په هر کال د ښويارانو (خوشحال)

**قتلمه** :- (قَ+تْ+لَ+مَ)-[اس-مو-ج:مې]-خاص قسم پراټې-کومې چې په غوړو کښې تله ولے شي.

**قتلمې** :- (قَ+تْ+لَ+مې)-[اس-مو-ج]-(۱) د "قتلمه" جمع. (۲) د "قتلمه" اضافي او مجروري وغيره (متغير) شکل.

**قتلول** :- (قَ+تْ+لَ+وُ+لْ)-[مص]-وژل-مړ کول-قتل کول.

**قتلېدل** :- (قَ+تْ+لې+د+لْ)-[مص]-قتل کېدل-وژلے کېدل- وجلے کېدل.

**قتي** :- (قَ+تي)-[حرف]-د "قطعي" بدل شکل دے- بېخي- بالکل.

**قتۍ** :- (ق+تَ+ۍ)-[اس-مو]-کپۍ-کوپۍ.

**قتۍ** :- (قُ+تَ+ۍ)-[اس-مو]-(۱) وړه شان قته-وړوکے شان ډوغل د زنې قته. (۲) سوره. (۳) (بازاري) کنه-کُس (په کنځلو کښې استعمالېږي.

**د قتۍ زويه** :- (---زو+ىَ)-[اپ تر]-کنځل دي.

**قتے** :- (ق+تَے)-[اس-مذ-ج:تي]-غونډسکے-پنډوس-(د څرمنې يا د مالوچونه جوړ شوے).

**قتيل** :- (قَ+تى+لْ)-[ع-اس-مف-ج: ان]-(۱) وژلے شوے-وجلے شوے-مړ کړے شوے-قتل شوے- مقتول. (۲) مجازاً: عاشق-مئين-سخت مئين.

**قټ** :- (قَ+ټْ)-[اصف-مذ-مو:ه]-غټ-په جسامت کښې لوے.

**قټه** :- (قَ+ټَ)-[د قټ تانيث دے].

**قټه کول** :- (ماشومان) صلح کول-(د صلحې د پاره ماشومان په خپله کښې قټې ګوتې جنګوي). کټه کول- لويول

**قټه ګوته** :- (---ګُ+تَ)-[اپ تر-اس-مو-ج: قټې ګوتې]-غټه ګوته-هغه ګوته کومه چې د نورو څلورونه بيله اوغټه ده.

**قټي کول** :- (قَ+ټي ---)-(و---- قټه کول)

**قجرے** :- (قَ+ج+رے)-[اس مذ-ج:ري]-هغه غده کومه چې د زين د لاندې په اس باندې اچولے شي.

**قجوره** :- (قَ+جُو+رَ)-[اس-مو-ج:رې]-کجوره-مشهوره مېوه.

**قجير** :- (قَ+جي+ر)-(اس-مذ-ج:ان]-(۱) ګنجې-د تپوس نه لوے مردار خور مارغه دے. (۲) ښکلے-ښاپئسته.

وار شۀ د زاغانو د ټپوس او د ټيغانو

بند شو قجيران د بيلتا نۀ په جال خزے

(حافظ)

**قچر** :- (قَ+ج+رْ)-[اس-مذ-ج:ان]-(۱) مشهور ځناور-چې د خر او د اسپې د يو ځاے کولونه پېدا کېږي. (۲) مجازاً: شهوت پرست-شهوتي خبرې کوونکے-بې شرمه.

**قچره** :- (قَ+چ+رَ)-[اس-مو-ج:رې]-(۱) د قچر تانيث دے-ماده قچر (۲) شهوتي- د بې شرمۍ-لکه: قچره خبره.

**قچره خبره** :- (---خَ+ب+رَ)-[اپ تر-اس-مو-ج: قچرې خبرې]-د شهوت نه ډکه خبره-د بې حيايۍ خبره-د بې شرمۍ خبره.

**قچرې** :- (قَ+چ+رې)-[اس-مو-ج]-(۱) د "قچر" جمع ده. (۲) د "قچر" اضافي او مجروري وغيره (متغير) شکل دے.

**قچرې خبرې کول** :-د شهوت خبرې کول-د بدکارۍ خبرې کول-خرابې خبرې کول.

**قچه** :- (قُ+چَ)-[اصف-مو-ج:چې]-خچه-وړه-وړوکے-کچه.

**قچه کول** :- (ماشومان) تعلق قطع کول. دوستي ختمول-د دوستۍ د ختمولو د پاره دواړه ماشومان قچې ګوتې يو بل سره جنګوي.

**قچه ګوته** :- (---ګو+تَ)-[اپ تر-اس مو-ج: قچې ګوتې]- وړه ګوته- هغه ګوته چې د ټولو ګوتونه وړه او نرۍ وي. خچه ګوته.

**قچې** :- (قُ+چې)-[اس-مو-ج]-(۱) يو اواز چې ګډو بزوته د شړلو په وخت کېږي. (۲) د خر د شړلو اواز. (۳) قېنچۍ چلېدو اواز.

**قچې قچې** :- (---ق+چې)-[اس-صوت]-(۱) د قېنچۍ د چلېدو واز. (۲) د خر د شړلو اواز.

**قچے** :- (ق+چِے)-[اس-مذ-ج:چي]-ټولے-ډله-جمعیت.

**قحبه** :- (قَ+حْ+بَ)-[ع-اس-مو-ج:بې]-(۱) فاحشه ښځه-رنډۍ-بدکاره ښځه.

دا قحبه که په رنګ ښۀ ده خوي ئې ګوره
جـدائي ورځـنـي ښـۀ ده د وصـال نـه (خوشحال)

(۲) مجازاً: دنیا

دا دنیا لکه پولې یاران ئې ډېر دي
د بړوا په څېر بند شوے په قحبه ئې (حافظ)

**قحبه خانه** :- (ــــخا+نَ)-[عف تر-اس-مو-ج: نې]-(۱) هغه کور چرته چې رنډۍ او فاحشې ښځې اوسي. (۲) د رنډیو بازار-د فاحشو ښځو بازار-د ډمو بازار.

**قحبه ګره** :- (ــــګ+رَ)-[عف تر-صف-مو-ج:رې]-بد چلنده ښځه-رنډۍ-فاحشه ښځه.

**قحبه ګري** :- (ــــګَ+رِي)-[عف تر-اس-مو]-رنډي توب- فحش کاري.

**قحط** :- (قَ+ح+طْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- (۱) سوکړه- خشک سالي- د فصلونو نۀ کېدنه-د خوراک د څیزونو کمے یا نایابي-قات-قحطي. (۲) مجازاً: د کوم څیز نایابه کېدنه نۀ موندلے کېدنه.

**قحط سالي** :- (ــــسا+لي)-[عف تر-صف]-هغه کال چې په کښې بارانونه نۀ وي شوي او د فصلونو د نۀ کېدلو په وجه د غلې وغیره نیشتیا وي.

**قحطي** :- (قَ+ح+طي) یا (قا+طي)-(۱) (و___ قحط). (۲) قحط سره تعلق لرونکے-قحط ته منسوب.

**قد** :- (قَ+دْ)-[اس-مذ-ج:ونه]-(د کوم څیز) اوچت والے-لوړ والے قد قامت- ونه.

**قد ادم** :- (ــــآ+دَ+مْ)-[عف تر-صف]-(۱) د بني ادم د قد هومره تقریبًا شپږ فټه یا دوه ګزه. (۲) د ائینې په حقله وئیلے شي- هغه ائینه کومه چې د بني ادم د قد هومره وي. چې بني ادم په کښې د سرنه پښو پورې ښکاري.

**قداور** :- (ــــآ+وَ+رْ)-[عف تر-صف مذ-مو:ه]-لوے قد واله-لوے جوثې واله-لوے-لوړ.

**قدوبالا** :- (ــــ(دو)+با+لا)-[عف تر-اس-مذ]-د دواړو لفظونو تقریبًا یو شان معنې دي-قدقامت- ښکلے-لوړ قد.

**په قدقامت** :- د قدقامت په لحاظ سره-د ونې نه-لکه: فلانے په قدقامت ستا نه لږ مندرے دے.

**قدامت** :- (قَ+دا+مَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: ونـه]-(۱) زوړوالے- لرغـون والے- پخواني توب. (۲) تېره زمانه-پخوانۍ زمانه. (۳) تل والے-همېشګي.

**قدامت پرست** :- (ــــپَ+رَ+سْ+ت)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-زوړوالے خوښوونکے-زوړدود دستور خوښوونکے.

**قدامت پسند** :- (ــــپَ+سَ+نْ+د)-(و- قدامت پرست)

**قدامت ورکول** :- وړاندې کول-اهمیت ورکول.

**قدح** :- (قَ+دَ+حْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/اقداح]-(۱) جام- پیاله- لوے کنډول. (۲) د شرابو جام-د شرابو د څښکلو پیاله د بنګو د څښکلو پیاله- ساغر.

ارزو لــــرم ساقي یو څو اقدامه
که ئې راکړې د خاصد ښیښې له راحه (خوشحال)

(۳) د "قدح" ضد-اعتراض-تردید عموماً "رد" سره یو ځاے راځي یعني "ردقدح".

**قدح کش** :- (ــــکَ+شْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]- جام څښونکے-شراب څښونکے- شرابخور-شرابي.

**قدر** :- (قَ+د+رْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/اقدار]-(۱) عزت-درناوے-شان-مرتبه-لوئي-بزرګي. (په مرکباتو کښې په "دال" باندې سکون لوستے شي)

**قدر افزائي** :- عزت زیاتونه-شان زیاتونه-مرتبه لوېږنه.

**قدر افزائي کول** :- عزت زیاتول-د چا د کار مننه کول.

**قدر دان** :- (ــــدا+نْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-قدر پېژندونکے. (د چا د کار یا د قابلیت مننه کوونکے-مرتبه پېژندونکے)-عزت او احترام کوونکے.

**قدرداني** :- (ــــدا+ني)-[عف تر-اس-مو]-قدر پېژندنه-په قدر پوهه والے-عزت او احترام کونه-د چا د کار یا د قابلیت مننه کونه.

**قدر شناس** :- (ــــش+نا+س)-(و________ قدردان)

نشي موند په اشنایي کښې
یو احـــــد قدر شناس (حمید)

**قدر شناسي** :- (ــــش+نا+سي)-(و________ قدرداني).

**قدر قیمت** :- (ــــقي+مَ+تْ)-عزت-احترام-مرتبه-شان.

د هر چا قدر قیمت په خپل هنر دے
د ګني قدر څــرګند د ګني څــوند کا
(خوشحال)

**قدر لرل** :- (۱) عزت لرل-احترام لرل. (۲) قیمت لرل. (۳) مرتبه لرل-منزلت لرل-شان لرل.

**قدر مشترک** :- (ــــمُ+شْ+تَ+رَ+کْ)-[عف تر-اس-مذ]- هغه کُلي صفت چې په خپلو ټولو افرادو (غړو) کښې شرکت لري.

**قدر من** :- (ــــم+نْ)

**قــدر منــد** :- (ــــمَ+نْ+د)-[عـپ تـر-صـف-مـو:ه]-(۱) قـدر کـوونکے-قـدر پېژندونکے. (۲) د قدر وړ-د عزت وړ.

**قدر ناک** :- (ــــنا+ک)-[عپ تر-صف مذ-مو:ه]-د قدر وړ.

هر ګفتار مې قدر ناک لکه سرۀ زر وو
د پــدول خبــره بــې ارزه ایرې وه (حافظ)

**قدر ورکېدل** :- قدرنۀ پاتې کېدل-بې قدره کېدل.

**قــدر و منزلت** :- (ــــرو+مَ+نْ+زِ+لَ+تْ)-[عـف تـر-اس-مـذ]- د دواړو لفظونو تقریبًا یو شان معنې دي. دویم لفظ د تاکید د پاره راوستے شي. قدر او مرتبه- قدر او عزت.

**د قدر په سترګه کتل** :- د عزت په نظر کتل- عزت کول-درونډ ګڼل.

**د قدر وړ** :- (ــــو+ړْ)-[اپ-تر-حرف]-د قدر لائق-د احترام قابل-د عزت قابل.

**شبِ قدر** :- (شَ+بِ___)-[عف تر-اس-مذ]-(و________ شوقدر)

**قدر** :- (قَ+دُ+رْ)-[حرف]-اندازه-مقدار-جاج- هومره برابر.

**په قدر د استطاعت** :- (ــــدَ-ا-سْ-ت-طا-عَ-تْ)-په دومره اندازه چې څومره د سړي وس وي-د (خپل) وَس په اندازه.

**په قـدر د کفایت** :- (ــــک+فا+یَ+تْ)-په دومره اندازه چې کوم مقصد د پاره کافي وي-کافي-چې کفایت کوي.

**قدر** :- (قَ+دَ+رْ)-[ع-اس-مذ]-قضا-د الله پاک حکم-تقدیر. (عمومًا قضا سره یو ځاے راځي)

**قضاوقدر** :- (قَ+ضا+ؤ___)-[عف تر-اس-مذ]-د دواړو لفظونو تقریباً یو شان معنې دي- دویم لفظ د تاکید د پاره راځي. د قسمت لیک-تقدیر-د بني ادمانو د پاره په ازل کښې مقرر شوے حکم.

**قدرت** :- (قُ+دْ+رَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) فطرت-نېچر-خدائي طاقت. (۲) طاقت-زور-توان-مجال. (۳) اختيار-واك. (۴) شان د خداے پاك-د خداے پاك صفت.

**قدرت كامله** :- (ــــكا+مِ+لَ)-[عف تر-اس-مو]- كامل قدرت-بې انتها قوت. (عموماً د خداے پاك د صفتونو په حقله وايه شي)

**قدرت لرل** :- طاقت لرل-زور لرل-توان لرل-مجال لرل.

**د قدرت كارخانه** :-

**دقدرت تماشه** :- د خداے پاك د صفتونو په حقله وئيلے شي. چې لوے طاقت، حكمت او قدرت لري.

**قدرتاً** :- (قُ+دْ+رَ+تَ+نْ)-[ع-تف]-قدرتي طور سره-د فطرت د قانون مطابق.

**قدرتونو** :- (قُ+دْ+رَ+تُو+نُو)-د "قدرتونه" اضافي او مجروري وغېره (متغير شكل) دے.

**د قدرتونو خاوند** :- (ــــخا+وَ+نْ+د)

**د قدرتونو ځښتن** :- (ــــت) س+خْ+تَ+نْ)-د قدرتونو مالك- خداے پاك- عموماً د كوم عجيبه ځيز چې پيدا ښت ئې د فطرت سره تعلق لري-د ليدو په موقع د حيرت او تعجب ښكاره كولو د پاره وئيلے شي.

**قدرتي** :- (قُ+دْ+رَ+تي)-[عف تر-صف]-(۱) قدرت سره تعلق لرونكے- فطرت ته منسوب- فطري- طبعي. (۲) اتفاقي- بغېر د ارادې. (۴) اصلي- ذاتي.

**قدرول** :- (قَ+دْ+رَ+وُ+لْ)-[امص]-قدر كول-عزت كول-د چا د كار يا د خدمت وغېره مننه كول.

**قدرونه** :- (قَ+دْ+رَ+وُ+نَ)-[احمص]-قدر كونه-عزت كونه-عزت وركونه-د چا د قابليت، كار خدمت وغېره مننه كؤنه.

**قدروونكے** :- (قَ+دْ+رَ+وُو+نْ+كَے)-[اس فا-مذ-ج:كي]-قدر كوونكے-عزت احترام كوونكے-د چا د قابليت- خدمت وغېره مننه كوونكے.

**قدري** :- (قَ+دْ+رِي)-[عپ تر-صف]-(۱) د قدرور-قدرمند. (۲) قدر كوونكے.

**قدري** :- (قَ+دْ+رِي)-[عف-صف]-(۱) د "قدر" نظرئې سره تعلق لرونكے. (۲) د ازل په ليك عقيده لرونكے- چې هر څۀ د ازل نه ليكلي شوي دي-د قسمت قائل.

**قدري فلسفه** :- (ــــفَ+لْ+سَ+فَ)-[عف تر-اس-مو]-هغه فلسفه چې بنياد ئې د قضاوقدر په عقيده وي- يعنې په دنيا كښې چې هر څۀ كېږي هغه د ازل د ليك مطابق كېږي.

**قدرې** :- (قَ+دْ+رِ)-[عپ تر-صف]-لږ شان-پوتې شان-عموماً "څۀ" سره يو ځاے راځي. لكه: څۀ قدرې دمه ئې شوې ده.

**قدريه** :- (قَ+دَ+رِي+ىَ)-[اس-مع]-هغه ډله چې د قسمت يا د قدر د ليك قائله ده.

**قدس** :- (قُ+دْ+س)-[ع-اس-مذ]-(۱) پاك والے-پاكيزه والے. (۲) (مع) بيت المقدس- يروشليم يا اورشليم.

**دقدس ښهر** :- (ــــخَ/شَ+هَـرْ)-[اس مع]-بيت المقدس-د فسطين هغه مشهور ښهر چې د دنيا د دريو لويو مذهبونو خلك ئې پاك او متبرك ګڼي-په تورات كښې د دې ښهر نوم يروشليم يا اروشليم راغلے دے.

**قدس** :- (قُ+دُ+سْ)-[ع-صف]-پاكيزګي-پاكوالے.

**روح القدس** :- (رو+حُ+لْـــ)-[ع تر-اس-مع]-پاك روح- مراد تري حضرت جبرائيل؈ فرښته ده.

**قدسي** :- (قُ+دْ+سِي)-[ع تر-اس-صف-مذ-ج:ان]-(۱) پاك-پاكيزه-متبرك. (۲) فرښته- ملائكه.

ستا ترقي به هله وشي و اعلى مقام ته!
چې په طريق د قدسيانو په خدمت ولاړ ئې (حافظ)

**قدسي حديث** :- (ــــحَ+دِي+ث)

**حديث قدسي** :- (حَ+دِي+تِــــ)-[ع-پ/ف تر-اس-مع]-هغه حديث چې رسول پاك صلى الله عليه وسلم په كښې د خداے پاك څۀ وينا بيان كړې وي-د خداے فرمان د رسول پاك صلى الله عليه وسلم په حديث كښې.

**عالمِ حديث** :- (عا+لَ+مِــــ)-[عف تر-اس-مذ]-پاكه دنيا- اسماني دنيا.

**قدسيت** :-(قُ+دْ+سي+ىَ+تْ)-[ع-اس-مذ]-پاكي-پاكوالے-پاكيزګي.

**قدسيه** :- (قُ+دُ/دْ+سِي+ىَ)-(۱) د "قدسي" تانيث دے. (۲) د زنانه ؤ په نوم كښې راځي.

**قدغن** :- (قَ+دْ+غَ+نْ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) منع-بندېز-نهي-ممانعت. (۲) بډن-كوره-شول-كورغ.

**قدغن لګول** :- پابندي لګول-بندېز لګول-منع كول-ممانعت كول.

**قدقامت** :- (قَ+دْ+قا+مَ+تْ)-[ع-جمله]-(۱) د بدن اوچت والے-لوړ والے-ناپ. (۲) قد قامت الصلوة يوه جمله ده چې د نمانځه د پاره د جمعې د ودرېدلونه وروستو وئيلے شي. يعنې چې نمونځ قائم شۀ يا ودرېد!

چې محراب ئې د ابرو راته ښكاره شو
هغــــه دم ئې نعره وكړه قــــدقــامت (خوشحال)

**قدم** :- (قَ+دَ+مْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/اقدام]-(۱) چل-قدم. (۲) پښه-پالے. (۳) هغه فاصله كومه چې په عام تګ كښې د پښې د پورته كولو او د پښې وړاندې كېښودلو تر مېنځه وي. (۴) د تګ رفتار- چال.

**قدم بوس** :- (ــــبو+س)-[عف تر-صف مذ-مو:ه]-قدم ښكلوونكے-د چاپښې ښكلوونكے. ډېر زيات تعظيم او عزت كوونكے.

**قدم بوسي كول** :- پښې ښكلول-مجازاً د چا بزرګ سړي په خدمت كښې خاضرېدل.

**قدم په قدم** :- (ــــپَ+قَ+دَ+مْ)-(۱) قدم سره قدم-برابر-چا سره قدم په قدم تلل. (۲) په هر يو قدم-په هره مرحله: لكه: قدم په قدم ګرانه پېښېدل.

**قدم خوئېدل** :- (۱) پښه خوئېدل. (۲) يوه اصطلاح ده. ناكامه كېدل.

**قدم د كرښې نه باهر كول/كېښودل** :- د قاعدې قانون نه خلاف عمل كول.

**قدم دار** :- (ــــدا+ر)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-د ښۀ قدم خاوند-بختور-نېك فال واله-خوش بخته-نېك مرغه.

**قدم ملاووَل** :- د فوځيانو يا پوليسانو يا د سكول د هلكانو په پرېډ كښې د تګ په وخت يو بل سره قدم يو شان پورته كول-قدم سره قدم برابرول.

**قدم نيول** :- په تلو تلو كښې و درېدل يا خپل رفتار وروكول.

**قدم** :- (قِ+دَ+مْ)-[عف-اس-مذ]-(۱) قدامت-تل والے-زوړ والے-پخواني توب-وړومبي توب-زړتيا.

نۀ زياتېږي نۀ كمېږي
تر ابــده ، تــر قــدمه (خوشحال)

(۲) د خداے پاك يو صفت.

**قدما** :- (قُ/قُ+دَ+ما)-[ع-اس-ج]-پخواني خلك-زاړۀ خلك-د زړې زمانې خلك-لرغوني.

**قدمچه** :- (قَ+دَ+مْ+چَ)-[اس-مو-ج:چې]-هغه پايه چې د ناستې په وخت پرې پښې كېښودے شي-د بيت الخلا (ټټې) هغه پخې جوړې شوې اوچتې پائې چې بني ادم پرې د رفع حاجت په وخت د كښېناستلو د پاره پښې

ږدي. (۲) د قدم تصغیر-وړوکے قدم.

**قدمونه** :- (قَ+دَ+مُو+نَ)-[اس-مذ-ج]-د "قدم" جمع ده.

**قدمونه اخستل** :- ورو ورو په مخکښې تلل یا ښوئېدل. لکه: په اسمان کښې سپوږمۍ ورو ورو قدمونه اخپستل. (ر-ق)

**قدمونه اخپستل** :- (۱) روانېدل-په مخکښې حرکت کول. (۲) کوم ځاے یا فاصله د قدمونو په حساب کچ کول.

**قدمونه شمارل** :-

**قدمونه شمېرل** :- ډېر احتیاط سره قدمونه اخپستل.

**فراخ قدمونه اخپستل** :- لوے لوے قدمونه اخپستل-ګامونه اخپستل-تېز تېز تلل.

**قدوري** :- (قَ+دُو+رِي)-[اس-مع]-(ــ۱۰۳۶ء) ابوالحسین احمد بن محمد چې د حنفیه مسلمانانو د فقې مشهور کتاب مختصر القدوري ئې لیکلے دے.

**قدوس** :- (قُ+دُ+دُو+س)-[ع-صف]-(۱) سپېڅلے-ډېر سپېڅلے-ډېر پاك. (۲) د خداے پاك یو صفاتي نوم. (۳) د نارینهٔ په نومونو کښې راځي.

**قدوسیت** :- (قُ+دُ+دُو+سِی+یَ+تْ)-[ع-اس-مذ]-پاکوالے-پاکېزګي-ډېر پاکوالے.

**قدوم** :- (قُ+دُو+مْ)-[ع-اس-مذ]-راتلل-راتګ-راتلهٔ-(د عزت په موقع وئیلے شي)-د سفر نه بېرته راتلنه.

سپین قدم ئې صبحدم د غم تیرې وړې
اندوهګین په قدوم خلاص کړه له وباله (حافظ)

**قدوه** :- (قُ+دُ+وَ)-[ع-صف]-(۱) چوڼ کړے-منتخب-غوره کړے. (۲) نمونه-مثال-پیشوا. (عموماً نوروالفاظو سره یو ځاے راځي).

**قدیر** :- (قَ+دِي+رْ)-[اس-صف-مذ-مو:ه]-(۱) قدرت لرونکے-طاقت اختیار لرونکے-طاقت او اختیار واله. (۲) (مع) د خداے پاك یو صفاتي نوم. (۳) د نارینهٔ په نوم کښې استعمالېږي.

**قدیم** :- (قَ+دِي+م)-[ع-صف-مذ-مو:ه]-(۱) قدامت لرونکے-زوړ-پخوانے-د پخوانۍ زمانې-لرغونے. (۲) د خداے پاك یو صفاتي نوم. (۳) د نارینهٔ په نومونو کښې استعمالېږي.

**قدیمه** :- (قَ+دِي+مَ)-د "قدیم" تانیث دے.

**قدیمه خدایه!** :- اے خدایه چې صفت دې "قدیم" دے یعنې اے خدایه چې تهٔ د ازله موجود ئې. (د خداے د صفت په طور د دې لفظ یعنې د زوړ یا د لرغوني وغېره نه کېږي).

**قدیمي** :- (قَ+دِي+مِي)-[عف تر-صف]-زوړ-پخوانے-لرغونے.

**په قدیمي ډول** :- (ــ ډَو+ل)-[عپ تر]-د پخوا په شان-د پخواني وختونو په شان.

**قذف** :- (قَ+ذَ+ف)-[ع-اس-مذ]-د زنا تور په چالګول-کنځل کول-په کاڼي ویشتل.

**قر** :- (قُ+رْ)-[اس-صوت]-غُرْ.

**قر قر کول** :- (۱) غُر غُر کول-د قُر قُر یا د غُر غُر په شان اواز ایستل. (۲) (طنزاً) ویرېدل-کم همتي ښودل. (۳) د ګېډې قړ قړ کول.

**قرا** :- (قُ+را)-[ع-اس-مذ]-د قریه جمع ده-قراے.

**قرا** :- (قُ+رْ+را)-[ع-اس-ج]-د قاري جمع-لوستونکي-خصوصاً قران پاك په صحیح تلفظ سره لوستونکي.

**قرابادین** :- (قَ+را+با+دي+نْ)-[ع-اس-مذ]-د داروګانو د لغت کتاب-فارماکوپیا.

**قرابت** :- (قَ+را+بَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: ونه]-قربت-نزدې والے-نزدیکت-خپلولي- رشته داري-عزیز والي.

**قرابت دار** :- (ــ دا+ر)-[عف تر-اس-صف مذ-مو: ه، ج: ان]-قرابت لرونکے-رشته دار-خپل-عزیز.

**قرابت داري** :- (ــ دا+رِي)-[عف تر-اس-مو]-رشته داري-خپلولي-عزیزولي.

**قرابت لرل، چاسره** :- خپلولي لرل-رشته دار "بودل" رشته داري لرل-عزیز ولي لرل.

**قرابتي** :- (قَ+را+بَ+تي)-[عف تر-اس-مذ-ج: ان]-رشته دار-خپل-عزیز-قرابت دار.

**قرابونه** :- (قَ+را+بو+نَ)-(و ـــــــ قرابین).

**قرابه** :- (قَ+را+بَ)-[ع-اس-مو-ج: بې]-هغه لوے بوتل چې (عموماً) عرق په کښې کېښودلے شي-لوے بوتل-صراحي.

**قرابین** :- (قَ+را+بِی+ن)-[ت-اس-مذ-ج: ونه]-غربین-اصلاً "قرابینه" دے-هغه ارتې خولې ټوپك چې اوس له استعماله وتے دے. ځینې خلك ئې تش د دارو د ډزو پاره پکاروي.

**قرات** :- (قِ+رْ+اَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: ونه]-[ع-اس-مذ-ج: ونه]-(۱) لوستل-(۲) د حرفونو د خپلو خپلو مخرجونو په صحیح ډول ادا کول-خصوصاً د قران پاك صحیح لوستنه. (۳) د یو علم نوم. چې په کښې د عربۍ ژبې د حرفونو (تورو) د صحیح مخرج ادا کولو په حقله بحث کولے شي-د تجوید علم.

**قرات** :- (قِ+را+ءَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: ونه]-لوستنه-لوسته-د قران مجید په صحیح تلفظ سره تلاوت.

**قرات خانه** :- (ــ خا+نَ)-[عف تر-اس-مو-ج: نې]-هغه ځاے چې په کښې لوستنه کولے شي-د لوستې کوټه. (انګ: ریډنګ روم)

**قرات کول** :- په صحیح تلفظ سره د کوم عبادت لوستنه کول-خصوصاً د قران پاك په صحیح تلفظ سره لوستل.

**قراح** :- (قَ+را+(رح))-[ع-صف]-صفا-خالص-نګه.

**قرار** :- (قَ+را+ر)-[ع-اس-مذ-ج: ونه]-(۱) ارام-اطمینان-سکون. (۲) قلار-په صبر-بې شور یا ژړا فریاد. (۳) ورو-په مزه. (۴) له رویه-مطابق. (۵) وجه-سبب-لکه: له څهٔ قراره؟ (۶) قول-عهد-لوظ قول. (۷) مطابق-سمون.

**قرار داد** :- (ــ دا+د)-(و ـــــــ قرار داد).

**قرار قرار** :- (ــ قَ+را+ر)-[عپ تر-تف]-ورو ورو-په مزه مزه.

**قرار کېښناستل** :- (۱) په قلار کېښناستل-شور شر یا جنګ جګړه نهٔ کول. (۲) حرکت نهٔ کول.

**قرار کېښېنه** :- (محاوره)-غلے کېښېنه-قلار کېښېنه. حرکت یا شور شر مه کوه-په دې معامله کښې دخل مه ورکوه.

**قرار کول** :- دمه خوړل-ایسارېدل-ارام کول.

تل وړومبنے د وروستي پل دے پرې تېرېږي
کـــړے نهٔ دے چا په پل باندې قرار (رحمان)

**قرار ګاه** :- (ــ ګا+(ه))-[عف تر-اس-مذ-ج: ونه]-د قرار ځاے-د ارام ځاے. دا لفظ د واحد په شکل کښې د مؤنث په طور هم راځي. خو جمع ئې مذکر په شان "قرار ګاهونه" راوړے شي.

**قرار مېندل** :- ارام موندل-اطمینان موندل.

**قرار نامه** :- (ــ نا+مَ)-[عف تر-اس-مو-ج: مې]-اقرار نامه-عهدنامه-لوظ نامه.

**قرارنیول** :- (۱) په سکون کښې ساتل-د حرکت نه منع کول. (۲) ایسارېدل-ټپکاوېدل.

په خاطر به دې قراره قراري وي
که دا خپلې چارې ونیسي قرارې (خوشحال)

**قراروالے** :- (ـــوا+لَے)-[عپ تر-اس-مذ]-استحکام.

**بر قرار** :- (بَـ+رْـــ)-[عف تر-صف]-په خپل ځاے-چې ځنګه ؤ هم هغه شان.

**قرار داد** :- (قَ+را+ر+دا+د)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) تجویز-فیصله. (۲) عهد و پیمان-لوظ قول-وعده.

**قرار داد پیش کول** :- تجویز وړاندې کول-په جلسه یا اجتماع کښې د کوم غړي د طرفه تجویز وړاندې کول.

**قرار دادي** :- (قَ+را+ر+دا+دي)-(۱) قرار داد سره تعلق لرونکے-قرار داد ته منسوب. (۲) د اقرار او لوظ قول مطابق.

**قرار واقعي** :- (قَ+را+ر+وا+قِ+عِي)-[عف تر-تف]-لکه ځنګه چې پکار دي-مناسب-درست-پوره.

**قراروّل** :- (قَ+را+رَ+ؤ+لْ)-[امص]-(۱) قلاروّل-په قلار کول-سکون ورکول-مطمئن کول. (۲) چپ کول-غلے کول. (۳) منع کول.

**ممنوع قراروّل** :- (مَ+مْ+نُو+ع)-ـــ)-منع ګرځول-(شرعاً یا قانوناً)-ممانعت کول.

**قراروّنه** :- (قَ+را+رَ+ؤ+نَ)-[احمص]-(۱) قلاروّنه-سکون ورکونه-مطمئن کونه. (۲) چپ کونه-غلے کونه. (۳) منع کونه.

**قراروونکے** :- (قَ+را+رَ+وُو+ن+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]-(۱) قلاروونکے-په ارام کوونکے-سکون ورکوونکے. (۲) چپ کوونکے-غلے کوونکے. (۳) منع کوونکے.

**قراره** :- (قَ+را+رَ)-د "قرار" بدل شکل-(ځینو مغیره تورو سره استعمالېږي).

**قراره قراري** :- (ـــقَ+را+رِي)-[اپ تر-تف]-قلاره قلاري-چپه چپیا. شور شر نهٔ "بودنه"-امن-سکون.

په خاطر به دې قراره قراري وي
که دا خپلې چارې ونیسي قرارې (خوشحال)
په تمام جهان قراره قراري ده
په حمید د غم مغل راوخاتهٔ (حمید)

**قرارے** :- (قَ+را+رَے)-(و ـــــ قراري).

**قرارے کول** :- قلار کېدل-په سکون کېدل.

روغ ئې هېڅ په حال خبر نهٔ دي له درده
که په درد کښې قرارے نهٔ کا رنځور (خوشحال)

**قرارے نیول** :- ایسارېدل - په ځاے ودرېدل.

**قراري** :- (قَ+را+ري)-[ع پ تر-اس-مو]-قلاري- قرار-سکون-اطمینان-امن.

**قرارېدل** :- (قَ+را+رے+د+لْ)-[امص]-(۱) قلارېدل-سکون موندل-مطمئن کېدل. (۲) په قلار کېدل-وروکېدل. (۳) منع کېدل. لکه: د هغهٔ نه قرار شه!

**قرارېدنه** :- (قَ+را+رے+د+نَ)-[احمص]-(۱) قلارېدنه-په قلار کېدنه-سکون موندنه-په سکون کېدنه. (۲) چپ کېدنه-غلے کېدنه. (۳) منع کېدنه-اوړېدنه.

**قرارېدونکے** :- (قَ+را+رې+دُو+ن+کَے)-[اس فا-مذ-ج: کي]-(۱) قلارېدونکے-په سکون کېدونکے-مطمئن کېدونکے-په تسله کېدونکے. (۲) چپ کېدونکے-غلے کېدونکے. (۳) منع کېدونکے-اوړېدونکے.

**قراص** :- (قَ+را+ص)-[ع-اس-مذ]-دولس درځنه (درجنه)- (د انګرېزي د "ګروص" بدل شکل دے).

**قراغے** :- (قْ+را+غـے)-[اس-ج]-د ډېرې کمزورۍ له کبله نتوتې-مانده (د سترګو سره راځي).

**قراغے سترګې** :- (ـــس+تُ+رْ+ګې)-[اپ تر-اس-مو-ج]-هغه سترګې چې د کمزورۍ له کبله په کاسو کښې دننه ننوتې وي.

**قراغے سترګې راوتل** :- (۱) سترګې د ډېرې کمزورۍ له کبله په کاسو کښې دننه ننوتل. (۲) مجازاً: ډېر زیات کمزورے او مانده کېدل.

**قراقـرم** :- (قَ+را+قُ+رْ+رُمْ)-[اس مـع]-د غرونو مشهوره سلسله چې د پاکستان او د چین تر مېنځه ده.

**شاهراهِ قراقرم** :- (شا+ه+را+هِـ)-[اس مع]-هغه مشهور پوخ سړک چې اوس اوس د چین او د پاکستان تر مېنځه جوړ شوے دے- دا ډېره پخوانۍ لار ده چې د چین نه افغانستان ایران او ترکي وغېره (او بیا یورپ) تر مېنځه د تجارت قافلې به پرې تلې راتلې- اهم تجارت په کښې د ریښموؤ-نو ځکه ئې ورته د ریښمو شاهراه هم وي.

**قراقلي** :- (قَ+را+قُ+لِي)-[اس-مو]-(۱)د نوي زېږېدلي ورغومي پوست چې توپۍ وغېره ترې جوړولے شي. (۲) د قراقلي پوست نه جوړه شوې توپۍ.

**قراقوم** :- (قَ+را+قُو+م)-[اس مع]-د یوې لوې صحرا نوم دے.

**قرامطه** :- (قَ+را+مِ+طَ)-د "قرمطي" جمع ده. (و ـــــ قرمطي).

**قران** :- (قْ+را+نْ)-[اس-صوت]-د کارغهٔ اواز.

**قـران** :- (قُ+رْ+آ+ن)-[یا (قُ/قـو+را+ن)-[اس مـع]-قـران مجید-کلام الله-د مسلمانانو مذهبي کتاب-دا کتاب په دېرشو برخو وېشلے شوے دے-هرې برخې ته سیپاره وائي-په دې کښې ۱۱۴ سورتونه دي.

**قران اخېستل** :- په قران قسم خوړل.

**قران اوچتول** :- (و ـــــ قران اخېستل)

**قران پورته کول** :- (و ـــــ قران اخېستل)

**قران په سر راتلل، چاله** :- د قسم پورته کولو په حالت کښې چاله راتلل. (عموماً د نفي په معنی کښې استعمالېږي. لکه: که فلانے را له قران په سر هم راشي نو هم پرې اعتبار نهٔ کوم).

**قران په مېنځ کښې "بودل"** :- په قران قسم خوړل-او د صحیح عمل د پاره قران ضمانت ګرځول.

**قران خوان** :- (ـــخ+وا+ن)-د قران لوسته کوونکے-د قران تلاوت کوونکے.

**قران خواني** :- (ـــخ+وا+ني) یا (ـــ خا+ني)-[عف تر-اس-مو]-د قران لوستنه-د قران تلاوت کونه-د ثواب د پاره د ګڼو کسانو قران لوستل.

**قـران خور** :- (ـــ خو+ر)-[ع ف-تر-صف]-(۱) په قران قسم خوړونکے-(۲) په قران ډېر قسمونه خوړونکے. (۳) عادتاً په قران قسمونه خوړونکے-دروغژن-بې اعتباره.

**قران خوړل** :- په قران قسم خوړل.

**قران ورکول** :- په قران قسم ورکول.

**قـران هدیه کول** :- د قران په بیعه یا په قیمت د اخستلو په موقع احتراماً د بیعې یا د قیمت د لفظ په ځاے "هدیه" کول وئیلے شي.

**په قران ګو** :- (ـــګو)-[قسم]- قران مې ګواه دے-په قران (مې-دې) قسم وي چې -
----------

**په قران لاس کېښودل** :- په قران مجید باندې قسم خوړل.

**د قران تلاوت** :- (ـــتِ+لا+وَ+تْ)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه]-د خاص قاعدو او

طريقو مطابق د قرانٰ شريف لوستنه.

**دقرانٰ ختم کول** :- د ګڼو کسانو د قرانٰ مختلفې برخې (سيپارې) لوستل-دغه شان په يوه ناسته کښې د درست قرانٰ تلاوت کول.

**دقرانٰ دوره کول** :- د دوه و (يا زياتو) حافظانو يو بل ته قرانٰ اورَول.

**دقرانٰ وهل** :- په قرانٰ باندې په دروغه قسم خوړونکي ته نقصان رسېدل يا مصيبت پېښېدل.

**قران** :- (قِ+را+ن)-[ع-صف]-(۱) نژدې والے-قربت-يو ځاے کېدنه. (۲) د نمر (نور) نه علاوه په نورو سيارو کښې د دوو سيارو په يو برج کښې يو ځاے کېدنه. په دې کښې د ځينو يو ځاے کېدل بختور ګڼلے شي لکه د زهره سيارې مشترې سره او د سپوږمۍ زهره سره يو ځاے کېدل. د نوي پيدا کېدونکي ماشوم د پاره بختور ګڼلے شي-ځکه هغه ته صاحب قران وائي. (۳) د حج او د عمرې يو ځاے ادا کونه.

**قران** :- (قِ+را+ن)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-د يوې سکې نوم-چې د شلو شاهي ګانو برابر وي-اوس دا سکه په ريال بدله شوې ده.

**قرانتين** :- (قَ+را+ن+تِي+ن)-(و____ قرانطين)

**قرانطين** :- (قَ+را+ن+طِي+ن)-[اس-ظر]-هغه ځاے چې په کښې مسافران ايسارولے شي.

**قراول** :- (قَ+را+ؤ+لْ)-[ت-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) په فوځ کښې د لوے لښکرنه وړاندې تلونکې دسته. (۲) ښکاري. (۳) شيش اخېستل-شست اخېستنه. (۴) د ټوپك وغېره شست.

**قراول خانه** :- (___خا+نَ)-[ت ف تر-اس-مو-ج:نې]-(۱) د فوځيانو د استوګنې ځاے-بارك. (۲) د محافظاتو د استوګنې ځاے-ګارډ هاؤس. (۳) هغه وړه شان کوټګۍ چې مخه ئې ازاده وي-او سنتري په کښې (د باد باران په موقع) خپله پهره ورکوي.

**قراول کول** :- شيش اخېستل-شست اخستل.

**قراولي** :- (قَ+را+ؤ+لي)-[ت-اس-مو]-(۱) د سنترې وظيفه-د محافظ يا د سنترې ذمه دارې. (۲) سنترې توب-محافظت-پهره.

**قرائن** :- (قَ+را+ئـ+نْ)-[ع-اس-ج]-د "قرينه" جمع ده. لکه: د (لـه) قرائنونه (څخه) داسې معلومېږي چې------

**قرب** :- (قُ+رْ+بْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) نژدې والے-نزديکت. (۲) خپلولي-رشته دارې.

**قرب وجوار** :- (___ (بو) جَ+وا+ر)-[عف-ظر]-د دواړو لفظونو تقريباً يو شان معنې دي. دويم لفظ د تاکيد د پاره راځي-خواوشا-شاوخوا-چار چاپېره-نژدې نژدې.

**قربان** :- (قُ/قُو+رْ+با+ن)-[ف-صف-مذ-مو:ه]-ځار-نثار-فدا.

**قربان کېدل** :- (و____ قربانېدل)

**يه قربان** :- (ىَ____)-[اسپ تر]-اَے، زهٔ لـه تانه قربان شم-د ټپونه اول په لوړ او اوږد اواز وئيلے شي-د دې نه وروستو ټپه وئيلے شي-د ټپې يو قسم لـه سر دے يکه ځار!

**قربان** :- [ندا]-(۱) د مخاطب متوجه کولو يا محض مخاطب کولو په وخت د مينې يا عزت د ښکارولو په غرض وئيلے شي. (۲) د جملې مخفف-يعني له تانه قربان شم.

**قربانول** :- (قُ/قُو+رْ+با+نَ+ؤ+لْ)-[مص]-قرباني کول-ځارول-فدا کول-صدقه کول-شيندل.

**قربانونه** :- (قُ/قُو+رْ+با+نَ+ؤ+نَ)-[احمص]-قرباني کونه-ځارونه-فدا کونه-صدقه کونه.

**قربانوونکے** :- (قُ/قُو+رْ+با+نَ+وُو+ن+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]-قربان کوونکے-ځاروونکے-فدا کوونکے.

**قربانۍ** :- (قُ+رْ+با+نَ+ى)-(۱) د "قرباني" جمع ده. (۲) د "قرباني" اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دے.

**دقربانۍ ځاروے** :- (___(ت)سا+ر+وے)-[اپ تر-اس-مذ-ج: وي]-هغه ځاروے (غوا، ګډه، مېښه وغېره) کوم چې د عيدالضحیٰ (لوے اختر) په ورځ د قربانولو د پاره واخستے شي يا وساتلے شي.

**دقربانۍ ورځ** :- (___و+رَ+(د)+ځْ)-[اپ تر-اس-مذ-ج: ځې]-(۱) د لوے اختر ورځ-د عيدالضحیٰ ورځ. (۲) هغه ورځ چې په کښې د کوم مقصد د پاره د مال دولت (يا د سر) قرباني ور کولے شي.

**قرباني** :- (قُ+رْ+با+ني)-[عف تر-اس-مو]-(۱) د لوے اختر (عيد قربان) په ورځ د ځاروي حلالونه-د الله په نامه ذبح کونه. (۲) د کوم مقصد د پاره د کوم (ښهٔ يا قيمتي څيز) ويړيا ور کونه-شيندنه. (اصلاً دا لفظ قربان دے- چې په عربۍ کښې په دغه برنې معنې کښې استعمالېږي. خو ځينو لورَوونکو ژبو (جبو) سره "ی" ور زياته کړې ده).

**قربانېدونکے** :- (قُ/قُو+رْ+با+نې+دُو+ن+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]-(۱) ځارېدونکے-نثارکېدونکے-فدا کېدونکے-سر ورکوونکے-د سر قرباني ورکوونکے-صدقه کېدونکے. (۲) د ډېرې زياتې مينې اظهار کوونکے-صدقه کېدونکے.

**قربت** :- (قُ+رْ+بَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) نژدې والے-خوا کښې "بودنه". (۲) رشته-خپلوي.

**قربوس** :- (قَ+رْ+بُو+س)-[اس-مذ]-د زين مخې ته لوړ ځاے- نکيے-نګوپے-قرپوق-د زين قاش.

**قربي** :- (قُ+رْ+بي)-[ع-اس-ج]-خپلوان-رشته داران-اقرباران.

**قرپوس** :- (قَ+رْ+پُو+س)-(و____ قربوس).

**قرپوق** :- (قَ+رْ+پُو+ق)-(و____ قربوس).

**قرت** :- (قُ+رُ+تْ)-[اس-جم]-وچ کړے پنير-قروت.

**قرچه** :- (قَ+رْ+چَ)-(و____ قچه).

**قرچه ګوته** :- (___ګُ+تَ)-(و____ قچه ګوته)

**قرح** :- (قَ+رْ+ح)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/قروح]-زخم-پټ.

**قرحه** :- (قَ+رْ+حَ)-[ع-اس-مو-ج:حې]-زخم-پټ. (خصوصاً هغه زخم چې پيپ په کښې پيدا شوے وي-او په کوم زخم کښې چې پيپ نهٔ وي. هغه ته "قُرحه" وائي).

**قرحي** :- (قَ+رْ+حي)-[عف تر-صف]-قرح يا قرحې سره تعلق لرونکے-زخم سره متعلق-زخمي-زخم واله.

**قرس** :- (قُ+رْ+س)-(و____ قرص).

**قرش** :- (قُ+رُ+شْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-د سعودي عرب يوه وړه سکه.

**قرشي** :- (قُ+ر+شي)-[اس-مع]-هغه کس چې د "قريش" د قبيلې ځخه وي-قريشي.

**قرص** :- (قُ+رْ+ص)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/اقراص]-(۱) غونډه ټيکي-ټيکۍ-ټکۍ (قندهار). (۲) غونډ-مدور-د دائرې د شکل د ډوډۍ د شکل. (۳) د دارو وړه شان غونډه ټيکۍ. (۴) د سپينو زرو يوه وړه سکه.

**قرض** :- (قَ+ر+ضْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-پور-وام-موس-هغه څيز چې د چا نه اخيستے شوے وي او بيا بېرته ورکول غواړي. هغه څيز چې بل چا لـه

ورکړے شي-چې بیا به ترې ببرته اخلي. (په مرکباتو کښې په ر باندې سکون (غړوندے) لوستے شي يعنې (قَ+رْ+ض) لکه: قَرْضُونه).

**قرض اخېستل/اغېښتل** :- [مص-تر]-پورول-د قرض په طور اخېستل-د واپس ورکولو په وعده اخېستل.

**قرض بې باقه کول** :- (و______ قرض ادا کول).

**قرض پور کول** :- د دواړو لفظونو يو شان معنې دي. دويم لفظ د تاکيد د پاره راؤړے شي-قرض مرض کول-په څۀ طريقه پېسې پېدا کول.

**قرض حسنه** :- (___حَ+سَ+نَ-[عف تر-اس-مو]-هغه پور چې محض د ښېګړې په طور ورکړے شي-او کوم زياتے (سود) ترې نۀ شي اخستے-بې سوده قرضه.

**قرض خواه** :- (___خ+وا+ه)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان]-قرض ببرته غوښتونکے-هغه کس چاچې قرض چاله ورکړے وي-(د قرضداري په مقابله کښې).

**قرض دار** :- (___دا+ر)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-پور وړے-پوره وړے-مقروض.

**قرضداري** :- (قَ+رَ+ضْ+دا+رِي)-(۱) د "قرضدارے" جمع ده. (۲) د "قرضدارے" اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل.

**قرضداري چا نۀ دي وژلي (وجلي)** :- پور وړي څوك مړ کوي نه-د قرض خواه د سختې مطالبې په موقع وئيلے شي-چې د پور وړي ته داسې سخته مطالبه نۀ ده پکار-هر کله چې ور څخه پېسې ټکې پېدا شي-نو در به کړي.

**قرضدارے** :- (قَ+رَ+ضْ+دا+رَے)-(و______ قرضدار).

**قرضه** :- (قَ+رْ+ضَ)-[اس-مو-ج:ضې]-د قرض رقم-پور کړے رقم.

**قرضي** :- (قَ+رْ+ضِي)-[صف]-د قرض سره متعلق-قرض ته منسوب.

**قرط** :- (قُ+رْ+ط)-[ع-اس-مذ]-د غوږ يو کالے-والي-لښتې.

**قرطاس** :- (قِ+رْ+طا+س)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/قراطيس]-کاغذ-د کاغذ پاڼه-د کاغذ تخته.

**قرطاس ابيض** :- (___اَ+بْ+يَ+ضْ)-[ع ف تر-اس-مذ]-(۱) د سپين کاغذ تخته-د سپين کاغذ پاڼه. (۲) هغه وضاحتي بيان-کوم چې د يو حکومت له طرفه چاپ او خور کړے شي.

**قرطاسيوي** :- (قِ+رْ+طا+سِي+وي)-[عف تر-صف]- قرطاس سره تعلق لرونکے-قرطاس ته منسوب. لکه: قرطاسيوي مواد.

**قرطاسيه** :- (قِ+رْ+طا+سِي+یَ)-[عف تر-صف]-(و______ قرطاسيوي)

**قرعو** :- (قُ+رْ+عو) يا (قُ+رُو)-د "قرعې" (جمع) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل.

**په قرعو خرڅول** :- (۱) د قرعه اندازۍ په ذريعه خرڅول. (۲) په لويو لويو برخو خرڅول. (۳) د لاټرۍ په ذريعه خرڅول.

**قرعه** :- (قُ+رْ+عَ)-[ع-اس-مو-ج:عې]-(۱) د رمالانو هغه شپږ اړخيز ګيټکے چې د دې په ذريعه د خلکو د قسمت حال معلوموي. (۲) پچه-هسك-خسنے. (۳) لاټرې.

**قرعه اندازي** :- (___اَ+نْ+دا+زي)-[عف تر-اس-مو]-(۱) پچه آچونه-خستے آچونه-هسك آچونه. (۲) لاټرې.

**قرعه بازي** :- (___با+زِي)-(عف تر-اس-مو)-(۱) د هسك په ذريعه جواري کول. (۲) د دانې په ذريعه جواري کول.

**قرعه کشي** :- (___ك+شي)-[عف تر-اس-مو]-(۱) هسك اچونه. (۲) لاټرې اچونه. (۳) د رائې شمارۍ د کاغذونو په ذريعه انتخاب وغېره کول.

**قرغزستان** :- (قِ+رْ+غِ+زِ+سْ+تا+ن)-[اس-مع]-په سوېت روس کښې يو ملك قرغېزستان.

**قرغزي** :- (قِ+رْ+غِ+زِي)-[صف]-قرغز سره تعلق لرونکے-قرغز ته منسوب-قرغېزي.

**قرغه** :- (قَ+رْ+غَ)-[اس-مع]-د ښهر نوم دے. لکه: د قرغې بند.

**قرغېچن** :- (قَ+رْ+غې+چِ+نْ)-[صف-مذ-مو:ه]-د يخنۍ نه کړونج شوے.

**قرق** :- (قُ+رَ+قْ)-[ت-اس-مذ]-(۱) ضبط کونه-ضبطي. (۲) منع-بنديز-ممانعت. (۳) نګراني-محافظت-څوکيداري.

**قرق نامه** :- (___نا+مَ)-[ترف-تر-اس-مو-ج:مې]-د قرقۍ کاغذ-هغه حکم کوم چې د يو عدالت د طرفه د چا د مال يا د جائيداد په خپل تحويل کښې د اخستلو په باب له شوے وي.

**قرقره** :- (قَ+رْ+قَ+رَ)-[اس-مو-ج:رې]-(۱) جغه-طره-نېغه شمله د پټکي.

هسې مـــــه وايه سرې دي د زنــــانو
که ئې اېښې په دستار کښې قرقرې دي (رحمان بابا)

(۲) دغوا وغېره د مستۍ په وخت خپله لکۍ نېغه ونه.

**قرقره** :- (قُ+رْ+قُ+رَ)-(و______ غرغره)

**قرقره دار** :- (___دا+ر)-قرقره لرونکے-جيغه لرونکے.

که چرګان قرقره دار دي
بيـا و باز و ته ناچار دي (خوشحال)

**قرقره کول** :- نېغ ودرول-(شمله) نېغول-د شملې په شان نېغ ودرول.

**لکۍ قرقره کول** :- لکۍ پورته کول او خورول-(لکه طاوس يا ځينې نورې مرغۍ).

**قرقي** :- (قُ+ر+قِي)-[اس-مو]-(۱) ضبطي-ضبط کېدنه. (۳) قرق نامه.

**قرمز** :- (قِ+رْ+مِ+زْ)-[اس-مذ]-يو قسم وړوکے شان سور رنګې چينجے-چې رېښم پرې رنګولے شي.

**قرمسات** :- (قُ+رَ+مْ+سا+تْ)

**قرمساغ** :- (قُ+رَ+مْ+سا+غ)

**قرمساق** :- (قُ+رَ+مْ+سا+ق)-[ع-ت-اس-مذ]-ديوث-داووس-دله.

**قرمط** :- (قَ+رْ+مَ+طْ)-[اس-مع]-د ابوذر لقب دے-چې د قرمطيه فرقې باني ؤ.

**قرمطيه** :- (قَ+رْ+مَ+طِي+یَ)-[اس-مع]-يوه فرقه چې باني ئې ابوذر قرمط ؤ. د دې فرقې بنياد په ۸۹۱ء کښې کښېښودے شوے وۀ.

**قرمه** :- (قُ+رْ+مَ)-[ف-اس-مو]-غرمه.

**قرمه** :- (قِ+رْ+مَ)-[ت-اس-مو-ج:مې]-وچه کړې غوښه-قاورمه.

**قرمه کول** :- (قَ+رْ+ن)-[ع-اس-ظر-ج:ونه/قرون]-(۱) دستورو (سيارو) يو ځاے کېدنه-دا سيارے لس، دولس، ديرش، اتيا يا شپږ شلې کاله پس يو ځاے کېږي ځکه د قرن نه د وخت مختلفې مودې مراد اخستے شي. ايراني قرن د دېرشو کالو وي-او "فرنګي قرن" د سلو کالو يعنې د يوې صدۍ (لکه: شلم قرن ميلادي) ځينو خلکو قرن د دولسو کالو هم ګڼلے دے-ځينې خلک د يو نسل وخت ته "قرن" وائي- (دا دېر شو کالو ته نژدې وخت دے). (۲) مجازاً: اوږده موده-اوږده زمانه.

زۀ په عشق کښې مستثنٰی لکه مجنون يم
چـې مـې نشته په ډېر قـــرن قـــرينه (خوشحال)

(۳) ښکر.

**قرن په قرن** :- (___پَ+قَ+رَ+نْ)-[عپ تر-ظر]-زمانه په زمانه-پېړۍ په پېړۍ.

**قرن** :- (قَ+رْ+ن)-[اس-مع]- د يمن يوه قبيله چې مشهور صحابي حضرت اويس (رض) له دغې قبيلې څخه ؤ. (ځينې خلک د ر زور سره هم وائي)

**قرنا** :- (قَ+رِي+نا)-[ع-اس-مؤ-ج:ګانې]-ښکر چې د غړولو د پاره جوړ شوے وي-بيګل-ترم.

**قرنفل** :- (قَ+رَ+نْ+فُ+لْ)-[ع-اس-جم]-لونګ-(دا لفظ د "كرن پهول" بدل شكل دے كرن غوږ ته وائي يعني د غوږ ګل-ځكه چې اكثر زنانه ئې په غوږ كښې كښېږدي).

**قرني** :- (قَ+رْ+نِي)-[عف تر-صف]-(۱) ښكر والـه-ښكردار. (۲) د "قرن" نومې قبيلې سره تعلق لرونكے. (د ر زور سره هم وئيلے شي).

**قرنين** :- (قَ+رْ+نَي+ن)-[ع-تثنيه]- دوه قرنونه-دوه ښكرونه.

**ذوالقرنين** :- (ذُ+لْ---)-[ع تر-صف]-(۱) دوو ښكرونو والـه. (۲) د يو بادشاه لقب-چې ذكر ئې په قرآن پاك كښې راغلے دے. ځينې خلكو ترې سكندر يوناني مراد اخستے دے (چې درست نهٔ دے ځكه چې دے شرك او بت پرست ؤ- او نهٔ دهٔ كوم بند تعمير كړے ؤ) د ځينو محققينو خيال دے چې دا د ايران يو پخوانے باچا سيروس يا سائرس ؤ. او د ځينو خيال دے چې دا د يمن يو پخوانے بادشاه ؤ-چې د اوبو د جمع كولو د پاره ئې يو لوے-بند جوړ كړے ؤ.

**قرنيكهٔ** :- (قُ+رْ+نِي+كْ)-[پ-تر-اس-مذ]-د دنيكهٔ نيكهٔ-غور نيكهٔ.

**قرنيه** :- (قَ+رْ+نِي+يَ)-[ع-اس-مو-ج:ئې]-د سترګې مرِدكے. (انګ: كارنيا)

**قروت** :- (قُ+رُ+تْ)-(و______ قرت).

**قروت** :- (قَ+رو+ت)-[ت-اس-جم]-وچ كړے پنير-قرت.

**قروح** :- (قُ+رُو+ح)-[ع-اس]-د "قرح" جمع ده-زخمونه.

**قرور** :- (قَ+رو+ر)-(و______ قرار).

**قروض** :- (قُ+رُو+ض)-[ع-اس]-د "قرض" جمع ده.

**قروغ** :- (قُ+رُ+غ)-(و______ قرق).

**قرول** :- (قَ+رَو+ل)-[ت-اس-مذ]-ښكاري-ښكار كوونكے-صياد.

**قرولي** :- (قَ+رَو+لِي)-[اس-مو]-(۱) د ښكاريانو چاړهٔ يا لوے چاقو. (۲) سنتري-څوكيدار.

**قرون** :- (قُ+رُو+ن)-[ع-اس-ج]-د "قرن" جمع ده.

**قرون اولي** :- (---اُو+لا)-[ع تر-ظر]- (د اسلام) اولنۍ پېړۍ.

**قرون وسطي** :- (---وُ+س+طا)-[ع تر-اس-ظر]-منځوي قرون-د موجوده او د ډېر پخواني دور تر مېنځه زمانه.

**قره** :- (قَ+رَ)-[ت-صف]-تور-سياه- (عموماً په مركباتو كښې راځي).

**قره قروت** :- (---قَ+رو+ت)-[ت تر-اس-جم]-هغه وچ كړے پنير چې تور رنګ لري-تور وچ كړے پنير.

**قره باغ** :- (قَ+رَ+با+غ)-[اس-مع]-د قاف د صوبې د يوې علاقې نوم چې اوس په روس كښې ده.

**قره قم** :- (قَ+رَ+قُ+مْ)-[اس مع]-په تركستان كښې د يو صحرا (رېګستان) نوم.

**قرة** :- (قُ+رْ+رَ+تُ)-[ع-اس-مذ]-يخوالے-سوړوالے- خنكي- (عموماً "العين" سره يو ځاے راځي).

**قراۃ العين** :- (---تُ+ل عَے+ن)-[ع-تر-اس-مذ]-(۱) د سترګو يخوالے-هغه چې د ليدونكي سترګې پرې يخېږي يا ارام مومي-مجازاً ډېر خوږ او زړهٔ ته نژدې بني ادم-زوے-لور-د سترګو تور. (۲) د زنانهٔ په نوم كښې استعمالېږي.

**قريب** :- (قَ+رِي+ب)-[ع-ظر]-(۱) نژدې-خواكښې-ورلنډ. (۲) عزيز-رشته دار. (۳) ګاونډي-ګواندي. (۴) (شعر) د عروض په علم كښې د يو بحر نوم.

**قريب الاختتام** :- (---بُ+لْ اِ+خْ+تِ+تا+م)-[ع تر-صف]- ختمېدلو ته نزدې-پوره كېدونكے.

**عن الاختتام** :- (عَ+نْ---)-[ع-تر-ظر]-ډېر زر-په لږ وخت كښې.

**ماضي الاختتام** :- (ما+ضي---)-[ع- تر- اس-مو]-نژدې-تېره شوې زمانه.

**قريباً** :- (قَ+رِي+بَ+نْ)-[ع-تف]-(۱) په نزدې وخت كښې-عنقريب. (۲) اندازې ته نژدې-خواؤشا.

**قريحه** :- (قَ+رِي+حَ)-[ع-اس-مو-ج: حې]-(۱) طبيعت-طبع-فطرت-سرشت-خټه-پنځون. (۲) خالص-نګه-نوږ-بې عيبه- بې وټه.

**قريحه لرل** :- طبيعت لرل-فطري مېلان لرل. لكه: ادبي قريحه لرل.

**قريحې** :- (قَ+رِي+حې)-(۱) د "قريحه" جمع ده. (۲) د "قريحه" اضافي او مجروري وغېره (متغير) شكل دے.

**قريش** :- (قُ+رَے+ش)-[اس-مع]-د عربو د يوې مشهورې قبيلې نوم چې په ټولو عربو كښې د ټولونه اشرافه او غالبه قبيله وه. حضور پاك صلعم له دغې قبيلې څخه ؤ.

**قريشي** :- (قُ+رَے+شِي)-[اس-مع-ج:ان، (مو:ه)]- د "قريش" قبيلې څخه تعلق لرونكے- حضور پاك صلعم هم دغې قبيلې څخه تعلق لارهٔ.

خير الخلق نبي عرب دے
قريشي عالي نسب دے (حافظ)

**قريشيه** :- (قُ+رَے+شِي+يَ)-[اس-مو-ج:ئې]-(۱) يو قسم لويه ستن چې سرئې را كوتې شوے وي-په دې باندې په تارونو سره جاليدار څيزونه جوړولے شي-د قريشي ستن. (۲) د قريشي تانيث.

**قريض** :- (قَ+رِي+ض)-[ع-اس-مذ]-(۱) شعر- منظوم كلام-سندره. (۲) د اوښ شخوند.

**قرين** :- (قَ+رِي+ن)-[ع-ظر-صف-مذ-مو:ه]-(۱) نژدې-جخت-متصل. (۲) هم مجلس-هم صحبت-هم نشين- انډيوال-ملګرے.

يو قرين هسې پېدا نهٔ شهٔ راڅخه
چې د ما په زړهٔ ئې نه كړه منګل ښخه
(خوشحال)

(۳) دوست-يار. (۴) مثل-په شان-په ډول-نظير. (۵) علامت-نخښه.

**قرين مصلحت** :- (---مَ+صْ+لَ+حَ+تُ)-[عف تر-صف]-مصلحت ته نزدې-د مصلحت سره (تقريباً) سم.

**قرينه** :- (قَ+رِي+نَ)-[عف تر-اس-مو-ج:نې]-(۱) د دوو څيزونو تر مېنځه ظاهري مناسبت. (۲) سياق او سباق-قياس. لكه! لـه قرينې څخه داسې معلومېږي چې. (۳) د يو څيز په جوړښت كښې د دواړو اړخونو په جوړښت يا په ګلونو وغېره كښې يو شان والے. (انګ: سمټري) (خج په "نَ" باندې دے). (۴) مثال-نظير.

زهٔ په عشق كښې مستثنیٰ لكه مجنون يم
چې مې نشته په ډېر قرن، قرينه (خوشحال)

**قرينې** :- (قَ+رِي+نې)-(۱) د "قرينه" جمع ده. (۲) د "قرينه" اضافي او مجروري وغېره اضافي (متغير) شكل دے. لكه: د (لـه) قرينې نه داسې معلومېږي چې.......

**قریه** :- (قَ+رْ+یَ)-(ع-اس-مو-ج:ئې/قراء)-کلې-بانډه-قصبه.

**قړ** :- (قُ+ړْ)-(و______ قړقړ)

**قړت** :- (ق+ړ+تْ)-[اس-صوت]-د خبرې لنډ شان اواز-لنډ شان خبره- خبره-یو لفظ-کش

**قړتو** :- (ق+ړ+تُو)-[اس-مذ]-ډېرې قړتې کوونکې-ډېرې خبرې کوونکې-بکواسي-یاوه ګو.

**قړته** :- (ق+ړ+تَ)-[اس-مو-ج:تې]-خوشې خبره-بکواس خبره.

**قړتی** :- (ق+ړ+تَ+ی)-(و______ قړته).

**قړچ** :- (ق+ړَ+چْ)-[اس-مذ-ج: ونه]-انښته-ورانې-اړیکه-خنډ- بندېز.

**قړچ راتلل** :- خنډ پېدا کېدل-اړیکه راتلل-(په روان کار کښې)-ورانې پېښېدل-په کار کښې بندېز پېدا کېدل.

**قړچ** :- (ق+ړ+چْ)-[اس-صوت]-د دوو سختو څیزونو په خپله کښې د جنګېدلو اواز.

**قړچ قړچ** :- (__ق+ړ+چْ)-[اس-صوت]-د دوو (یا زیاتو) سختو څیزونو په خپله کښې بیا بیا د جنګېدلو اواز. لکه: دغاښونو کړچ کړچ

**قړچول** :- (ق+ړ+چَ+وْ+لْ)-[مص]-غاښونه وغېره په خپله کښې داسې جنګول چې د قړچ قړچ اواز ترې پېدا شي. کړچول.

**قړقړ** :- (ق+ړ+ق+ړْ)-[اس صوت]-(۱) د ونو وچو شوؤ پاڼو باد سره په خپله کښې د جنګېدلو اواز-کړکړ. (۲) په ټیم یا صندوق کښې د ګڼو څیزونو په خپله کښې د جنګېدلو اواز-کړکړ.

**قړقېچ** :- (قَ+ړ+ق+ې+چ)-[اس-مذ-ج:ونه)-(و______ قړچ)

**قـړقېچن** :- (قُ+ړ+قې+چ+نْ)-[اپ تـر-صـف مـذ-مـو:ه]-د یخنـي نـه راغونـډ شوې-قرغېچن.

**قړمېزن** :- (قَ+ړْ+مې+ز+نْ)-[صف-مذ-مو:]-هغه کس چې پوزه ئې هر وخت بهېږي-مجازاً: پو واړ-پوهړ-خیرن پیرن لکه: د کور لور خور قړمېز نه وي. (متل)

**قړینګا** :- (ق+ړي+نْ+ګا)-[اس-مذ]-کانې-برینګا.

**قز** :- (قَ+زْ (ز))-[ع-اس-مذ]-(۱) ریښم-وریښم-کچه ریښم (چې لا رنګ نه وي ورکړ شوې)-(۲) ریښمینه جامه.

که څوك خوب په قز و خز کمخواب بخمل کا

له خوبرو سره همخواب پروت په افلاك شي (حافظ)

**قزاخ** :- (قَ+زا+خ)-[و______ قراق)

**قـزاز** :- (قَ+زْ+زا+ز)-[اس-مـذ-ج:ان]-(۱) قـز خرڅـوونکې-ریښـم خرڅـوونکې (۲) وریښمو کار کوونکې-د ریښمو چینجي ساتونکې.

**قـزاق** :- (قَ+زْ+زا+ق)-[ع-اس-مـذ-ج:ان]-ډاکـه مـار-لارې شـوکوونکې-کاروانونه وهونکې (لوټوونکې) شوکمار.

**قزاق** :- (قَ+زا+ق)-[اس-مع-ج:ان، (مو: ه]- د یو قوم نوم-چې په قزاقستان (د روس په ملك) کښې اوسي- کاسك.

**قزاقستان** :- (قَ+زا+ق+س+تا+ن)-[اس-مع]-د یو ملك نوم چې قزاق یا قازق یا کاسك خلك پـه کښـې اوسي-اوس د روس یو ازاد ریاست دے چې د قزاقستان شو روي سوسیالستي (سوسلستي) جمهوریت نومېږي.

**قزاقي** :- (قَ+زْ+زا+قِي)-[عف تر- اس-مو]-د قزاق پېښـه- ډاکـه مـاري-شوکماري-راهزني.

**قزاقي** :- (قَ+زا+قِي)-[اس-صف]-د قزاق (وګړے) سره تعلق لرونکے-د قزاقو ته منسوب.

**قزل** :- (قَ+ز+لْ)-[ت-صف]-سُور- سرخ.

**قـزل قلعـه** :- (__قَ+لَ+عَ) یا (__قَ+لا-سره قـلا-سره قلعـه-د شـېرخان (ښـهر) قلعه.

**قـزل ارسـلان** :- (قَ+ز+لْ+اَ+رْ+س+لا+ن)-[ف-اس مـع] -(۱) لفظـي معنٰـی سـور زمرے. (۲) د سلجوقي خاندان د یو بادشاه نوم. چونکې د هغهٔ وېښتهٔ سرهٔ وو ځکه ئې دا نوم پرې کېښود.

**قزلباش** :- (قَ+ز+لْ+با+ش)-[اس-مع]-(۱) قزل سُور ته وائي او "باش" سر تـه وائي لفظي معنٰی ئې سور سر یا سور سر واله دي. (۲) مغل سپاهي. د ایران شاه اسـماعیل خپلـو فوځیـانو تـه سـرې ټـوپۍ ور اغوسـتې وې. ځکـه د دغـو سپاهیانو دغه نوم وګرځېد- بیا وروستو د دغو اولاد هم په دغه نامه ونومېد.

د ادم د نسله نهٔ دي، ګــوره څــهٔ دي

دواړه ورك شه یو اوزبك بل قزلباش (خوشحال)

(ځینې وخت ئې تلفظ د ق او د ز زور سره (قَ+زَ+لْ) هم کولے شي.

**قزوین** :- (قَ+زْ+وِي+ن)-[اس-مـع]-د ایـران د یـو مشـهور ښـهر نـوم. د صوبې نوم هم دے.

**قس** :- (قَ+سْ)-(و______ قیس)

**قس** :- (قَ+سْ)-[اس-مذ]-د "قست" مخفف دے-ځینې خلك په خبرو اترو کښې د "قست" په ځاے "قس" هم ووائي. ("قست" اصلاً د "قصد" بدل شکل دے)

**قس** :- (ق+سْ)-[عف-جمله]-قیاس وکړه. عموماً پوره جمله یعنې قس علی لهذا (ق+س+عَ+لا+ها+ذا) کښې استعمالېږي-یعنې د دې خبرې نه په قیاس نورې خبرې معلومې کړه یا دغه شان نورې خبرې هم وګڼه.

**قسام** :- (قَ+سْ+سا+م)-[ع-اس-مذ-ج:ان]-تقسیم کوونکې-وېش کوونکې-وېشونکې-وېشګرندے-وېشګر.

**قسـام ازل** :- (__اَ+زَ+لْ)-[عف تر-اس-مذ]-په ازل کښې (د قسمتونو یا د برخو) وېش کوونکې-خداے پاك.

**قساوت** :- (قَ+سا+وَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج: ونه]-سخت زړوالے-سنګدلي- بې رحمي تور زن والے-ګرند والے. عموماً "قلب" سره یو ځاے راځي.

**قساوت قلب** :- (__قَ+لْ+ب)-[عف تر-اس-مذ]-د زړهٔ سخت والے-بې رحمي-سنګدلي.

**قسب** :- (قَ+سَ+بْ)-[ع-اس-مذ-ج: ونه:]-(۱) د ریښمو یو چینجے چې سور رنګ لري. (۲) پتکے.

ختېك واله بلنځه ښه زما تر ملا ده

نه ښېوه د نوکرۍ په قسبـــونــو

(خوشحال)

**قست** :- (قَ+سْ+ت)-[اس-مذ-ج: ونه]-د "قسد" بدل شکل دے.

د خوشحـــــال خلاصے له کومه

چې ئې تاغوندې په قست شول

(خوشحال)

**قست کول، چاسره** :- ضد کول-د چا د ضده څهٔ کار کول-حسد کول.

**له قسته**:- په قست-له قصده-ارادةً.

ما په اوربو ستر ګو ډېر یــاران خوړلي

په زیر زیر دې مخ ته نهٔ ګورم له قسته (خوشحال)

**قسـر** :- (قَ+سْ+ر)-[ع-اس-مـذ]-پـه چـا بانـدې پـه زور جبـر څـهٔ کـار کـول-

زبردستي کار اخستنه-بېګار-په زور ګمارنه.

**قســـط** :- (ق+سْ+ط)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]-(۱) عـدل-انصـاف-نيـاؤ. (۲) محصول-ټېکس.

**قسـط** :- (ق+سْ+ط)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه/اقسـاط]-(۱) حصـه-بخـره-برخـه. (۲) قرض يا واجب الادا رقم چې په مختلفو برخو کښې ادا کولے شي-نو د دې هرې برخې ته قسط وائي. ځينې خلک ورته "کشت" هم وائي.

**قسط اچول** :- د ګڼو کسانو، هره مياشت يو مقرره رقم جمع کول-او په همدغه ورځ د هسك په ذريعه نومونه را اېستل د چا نوم چې راوخيژي ټول رقم دغې کس لـه ورکول دغـه هر يو کس تـه په خپـل وار دغه غونډ رقم اورسي. عام طور سره "کشت اچول" وائي.

**قسط بندي** :- (ـــبَ+نْ+دي)-[عف تر-اس-مو]- قسطونه ترل-د کوم رقم وغېره د ادا کولو د پاره کل رقم برخې برخې کول-چې په برخو برخو کښې ادا کړے شي.

**قسطوار** :- (ـــوا+ر)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-په قسطونو وصولېدنه يا ورکونه.

**قسطاس** :- (ق+سْ+طا+سْ)-[ع-اس-مذ]-تله-ميزان-ترازو.

**قســطنطنيه** :- (ق+ُسْ+طَ+نْ+طَ+نْ+يَ)-[اس مـع]-د يـورپي ترکـي مشـهور اوښکلے ښهر. نن صبا ورته استامبول وائي-دا ښهر په اوو غرګيو اباد دے. دا ښهر يو رومن بادشاه قسطنطين اباد کړے ؤ. او تر ډېرو پېړو پـورې د رومنيـانو د شـرقي حکومـت دار الحکومـت ؤ. ۱۴۵۴ء کښـې ترکو فتح کړ. او لـه دغې وختـه راسې د ترکو په سلطنت کښې شامل دے.

**قسطونه** :- (ق+سْ+تُو+نَ)-[عپ تر-اس-ج]-د قسط جمع ده.

**قسم** :- (قَ+سَ+مْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-سوګند-لو-لوړه-لووه حلف.

**قسم اچول** :- چا لـه د څۀ کار د کولو يا د نۀ کولو د پاره قسم ورکول.

زمکې قسم مې درته واچؤ
چې خاورې نه کړې د جانان سپين مړوندونه (ټپه)

**تۀ قسم نۀ راکوے زۀ قسم خورم** :- [جمله]-تۀ ماله قسم نۀ راکوے. خو زۀ ستا د اعتبار د پاره په خپله قسم خورم چې.

**عسکري قسم** :- (عَ+سْ+کَ+ري-ـــ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]-هغه خاص قسم کوم چې په فوځ کښې د نوکر کولو په وخت ور کولے شي.

**قسـم** :- (ق+س+مْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه/اقسـام]-ډول-راز-نـوع-صـنف-جنس-توګه-طور-رنګ-(په مرکباتو کښې تلفظ د عربي په شان شي-يعني په س باندې غورځنده يا سکون شي-لکه: ق+سْ+مُو+نَ)

**قسم قسم** :- (ـــق+س+مْ)-[عپ تر-صف]-رنګ رنګ- ډول ډول-مختلف رنګه مختلف ډوله-نوع نوع.

**قسما قسم** :- (ق+س+م)-[اپ تر-صف]-رنګ رنګ-د مختلفو قسمونو-ډول ډول. لکه: قسما قسم مېوې يا قسما قسم خلک.

**قسمت** :- (قِ+سْ+مَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) په تقسيم کښې يوه برخه-په وېش کښې يوه حصه. (۲) نصيب-بخت. (۳) د صوبې يوه برخه.

**قسمت ازمائي** :- (ـــآ+زْ+ما+ئی)-[عف تر-اس-مو]-د خپل قسمت د ښۀ او بد په حقله ازمېښت-طالع ازمائينه-په کوم داسې کار کښې برخه اخستنه چې نتيجه ئې صفا ښکاره نۀ وي يعني کېدے شي چې ګټه وکړي او کېدے شي چې تاوان وکړي.

**قسمت اُودۀ "بودل"** :- قسمت خراب "بودل". بخت خراب "بودل" خراب قسمت.

**قسمت خرابېدل** :- بخت خرابېدل. په کوم کار کښې نقصان موندل يا ناکاميابه کېدل.

**قسمت رسېدل** :- خپله برخه قسمت کېدل-خپله برخه حاصلول.

څو ژوندے ئې د رزق مه کوه هېڅ غم
خپل قسمت به در رسېږي زيات وکم (خوشحال)

**قسمت نورول** :- قسمت بدلول-د قسمت ليك نورول.

**قسمت واله** :- (ـــوا+لَ)-[عپ تر-صف]-ښۀ قسمت واله-بختور-بختيالے-خوش بخته.

**قسمت ويښېدل** :- بخت ښۀ کېدل- بختور کېدل.

**په قسمت** :- په ډېر ښۀ نصيب سره-چې قسمت ډېر ښۀ وي. لکه: داسې اَس خو په قسمت ملاوېږي.

**د قسمت ستورے** :- (ـــس+تو+رَے)-[عپ تر-اس-ج:ري]-د قسمت ليك-نصيب-د بخت ستورے.

**د قسمت لوبه/لوبې** :- (ـــلو+بَ/بې)-د قسمت کارونه-د بخت کارونه.

**د قسمت ليک** :- (ـــلی+ك)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه]-په قسمت کښې ليکلے شوے کار-د تندي ليك-د بخت ليك.

**قسمتاً** :- (ق+سْ+مَ+تَ+نْ)-[ع-تف]-په قسمت-په قسمت سره- د قسمت په لحاظ سره- قسمت سره متعلق.

**قسمتونو** :- (ق+سْ+مَ+تُو+نو)-د قسمتونه متغير شکل دے.

**په قسمتونو** :- (و_______ په قسمت)

**دقسـمتونو وېـش** :- (ـــوې+ش)-د ازل پـه ورځ د هـر چـا د برخـو تقسـيم ازلـي ليك.

**قسمتونه** :- (ق+سْ+مَ+تُو+نَ)-[د قسمت جمع ده.

**قسمونه** :- (قَ+سَ+مُو+نَ)-د "قسم" جمع ده.

**قسمونه خوړل** :- ډېر سوګندونه خوړل-په ډېرو قسمونو خوړل-د بل تسله کول.

**قسميه** :- (قَ+سْ+مي+يَ)-[عف تر-تف]-(۱) په قسم سره- په سوګند سره. (۲) (ګرېمر) هغه جمله چې په کښې د قسم ذکر وي.

**قسميه وئيل** :- په قسم سره وئيل- په سوګند سره وئيل.

**قسوت** :- (قَ+سْ+وَ+تْ)-[ع-اس]-سخت زړۀ والے-تور زړه والے-کلك زړۀ والے.

**قسي** :- (قَ+سِي)-[ع-صف]-سخت-کلك.

**قسي القلب** :- (ـــ یُ+لْ قَ+لْ+ب)-[ع تر-صف-مذ-مو:ه]- کلك زړے- سخت زړے-ګړند تور زړے.

**قســيس** :- (ق+سْ+سـي+س)-[اس-مـذ-ج:ان]-د عيسـائيانو پـادري-د پادريانو يوه درجه ده.

**قسيم** :- (قَ+سي+م)-[ع-اس فا-مـذ-ج:ان]-(۱) تقسـيموونکے-وېـش کـوونکے-وېشـوونکے-وېشـګرندے. (۲) ښکلے ښائسـته-پـې مخـے-زېبا. (۳) د نارينه ؤ په نومونو کښې راځي.

**قشـر** :- (ق+شُ+رْ)-[ع-اس-مذ]-(۱) د کوم څيز پوستکے-پوټکے. (۲) د کوم سخت څيز لکه دال چڼه وغېره پوټکے-بوس.

**قشر دار** :- (ـــدا+ر)-(و_______ قشري).

**د زمکې قشر** :- (دَ+ز+مْ+کې-ـــ)

**د مځکې قشر** :- (دَ+م+(د)ز+ُکې-ـــ)-[عپ تر-اس-مذ]-د زمکې (يو) پوست-د زمکې برنے پوست.

**قشـري** :- (قِ+شَ+ري)-[عف تر-صف]-(۱) قشر لرونکے-پوستکے لرونکے-پوټکي واله. (۲) قشر سره متعلق-پوستکي سره مربوط.

**قشریه** :- (قِ+شْ+رِی+یَ)-(و______ قشري).

**قشقاش** :- (قَ+شْ+قا+ش)-[اس-جم]-قاش قاش-خشخاش-د ډوډۍ تخم.

**قشـقه** :- (قَ+شْ+قَ)-[ف-اس-مـو-ج:قې]-(۱) پـه تنـدي بانـدې يـو نخښـه-(خصوصًا د اسونو په تندي). (۲) هغه وړه شان غونډه نخښه يا خال چې تندي باندې د وروځو په مېنځ کښې جوړولے شي (عمومًا دا خال چې ورته ټيکه يا بندي وائي همدوې لګوي).

**قشلاق** :- (قَ+شْ+لا+ق)-[ت-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) د ژمي (جمي) د موسم د تېرولو ځاے-زنګوره-ژنګوره. (۲) بانډه-بانړېسته. (۳) بانړېسے-کلي وال.

**قشله** :- (قِ+شْ+لَ)-(۱) و______ قشلاق. (۲) چاوڼي-لشکرګاه.

**قشله ګاه** :- (___ګا+ه)-د چاوڼۍ ځاے-هغه علاقه چرته چې لښکر ډېره وي يا ډېره کېږي.

**قشنګ** :- (قَ+شَ+نَ+ګْ)-[ع-صف-مذ-مو:ه]-ښکلے-ښايسته-رنګين.

**قشون** :- (قُ/قُو+شُو+ن)-[ت-اس-مذ]-(۱) فوځ-لښکر-جګړن. (۲) د فوځ د ايسـاربدو ځاے-چـاوڼۍ-کيمپ. (۳) د فـوځ يـو دسـته. (اصلاً دا لفظ "قُشـن" وُ-فارسـي وانـو د ش د پـښېن پـه ځـاے واو وليکـهٔ. وروسـتو لوستونکو دغه واو هم معروفه واو وګڼل او قشون ترې جوړ شهٔ).

**قصــــاب** :- (قَ+صـــا+ب)-[ع-اس-مــذ-ج:ان، (مــو:ه]-(۱) پريکــوونکے-غوښوونکے-غوښه خرڅوونکے. (۲) څاروي حلالوونکے-ذبحه کوونکے. (۳) مجازاً-بې انصافه-زياتے کوونکے-بې ترسه-ګران فروش.

**قصاب خانه** :- (___خا+نَ)-[ع ف تر-اس-مو-ج:نې]-(۱) هغه ځاے چرته چې قصابي کېږي. د څاروو د حلالولو ځاے.

دا جهان قصاب خانه کړهٔ خداے وماته
پـال بسته ولاړ په غـولي د قصــاب يم   (رحمان بابا)

(۲) هغه بازار چرته چې قصابان غوښې خرڅوي. (۳) د ظلم زياتي ځاے.

**قصابه** :- (قَ+صا+بَ)-د "قصاب" تانيث دے.

**قصابي** :- (قَ+صا+بِي)-[عف تر-اس-مو]-(۱) د قصاب کسب-د قصاب کار. غوښې خرڅونه-حلاله کونه. (۲) بې انصافي-زياتے-ناترسي.

**قصابي کول** :- د قصاب کار کول-د څاروو د حلالولو کار کول-ذبحه کول.

**قصاص** :- (قِ+صا+ص)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-د خون بدل-د مړي پور-د مقتول په بدله کښې د قاتل مړکونه.

**قصاص اخېستل** :-

**قصاص اغېشتل** :- د مړي بدل اخستل-د مړي په بدله کښې قاتل وژل-(وجل).

**قصاص ورکول** :- د خون بدل ورکول-د مړي په بدل کښې قاتل وژلو (وجلو) له ورکول.

چې د عشق په توره ومري شهيدان شي
خپل وصال په هورې ورکاندې قصاص   (خواجه محمد)

**قصائد** :- (قَ+صا+ئِ+د)-[ع-اس-ج]-د "قصيده" جمع ده.

**قصب** :- (قَ+صَ+بْ)-[ع-اس-مذ]-(۱) هغـه دورمـه چې پـه مېنځ کښـې خالي وي-نل-دروے-کلکے. (۲) پرې کونه-غوڅونه (د غوښې وغېره).

**قصب** :- (قَ+صَ+بْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) کتـان-يـو قسم اعلی ريښمينه او تازکه کپړه-په مصر کښې جوړ شوے قصب ډېر مشهور وُ. (۲) مجازاً-خلعت.

خټک واله بلنځه ښه زما تر ملا ده
نهٔ ښېوه د نــوکرۍ په قصــبونو   (خوشحال)

**قصب پوش** :- (___پو+ش)-[عف تر-صف-مذ-ج:ه]-هغه چې د قيمتي ټوکي نه چې قصب نومېږي جوړې شوې جامې ئې اغوستې وي-خوش پوش.

**قصبات** :- (قَ+صَ+با+ت)-[ع-اس-ج]-د "قصبه" جمع ده.

**قصبه** :- (قَ+صَ+بَ)-[ع-اس-مو-ج:بې/قصبات]-(۱) لوے کلے-چې د ښـهرنۍ نه وړوکے وي-وړوکے ښهريه. (۲) د مرۍ نالۍ. (۳) نچه-نل-دورمه.

**قصـد** :- (قَ+صْ+د)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]-(۱) اراده-نيـت-انګځـه-نيامـت-عزيمت. (۲) توجه. (۳) ميانه روي-اعتدال.

**قصد کول** :- نيت کول-اراده کول-د کوم کار کولوته ځان تيارول.

د عيسیٰ ؑ د قتـــل قصـــد بـــدانو وکړ
نبي خلاص شو مفسد کښېوت په نامرادو   (حافظ)

**قصد من** :- (___م+نْ)

**قصد مند** :- (___مَ+نْ+د)-[اعپ تر-صف مذ-مو:ه]-اراده کوونکے-نيت لرونکے-نيت کوونکے.

**په قصد سره** :- [اعپ تر-تف]-په اراده-په نيت-په اراده سره-ارادتاً.

چې په قصد سره روژې څوك د رمضان خوري
نور څهٔ نهٔ کاندي په خپله خپـــل ايمان خوري   (خواجه محمد)

**قصداً** :- (قَ+صْ+دَ+نْ)-[ع-تـف]-پـه قصد سـره-پـه ارادې سـره-پـه کسـت-پـه نامت-له (د) قسته.

**قصدي** :- (قَ+صْ+دي)-[عف تر-صف]- قصداً-په اراده سره-په نامت-هغه چې په خطا يا قدرتي نهٔ وي. لکه: قصدي خندا.

**قصـر** :- (قَ+صْ+ر)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه/قصـور]-کمے-لنډوالے-کوتـاهي-نقص-عيب.

**قصر کـول** :- (قَ+صْ+ر)-[ع-اس-مـذ-ج:ونه/قصـور]-کمے-لنډوالے-کوتـاهي-نقص-عيب.

**قصص** :- (قَ+صَ+صْ)-[ع-اس-ج]-د "قصه" جمع ده.

**قصـص الانبيـاء** :- (___صُ+لْ+اَ+مْ+ب+يـا)-[ع تـر-اس-مـذ]-(۱) د پېغمبرانـو قصـي-هغـه کتـاب چې په کښې د پيغمبرانو حالات ليکلي وي. (۲) په مختلفو ژبو (جبو) کښې د دغې مقصد د کتابونو نوم.

**قصور** :- (قُ+صُو+ر)-[ع-اس-ج]-د "قصر" جمع ده. محلونه-ماڼۍ-ماڼۍ.

**قصـور** :- (قُ+صو+ر)-[ع-اس-مـذ-ج:ونه]-خطـا-ګنـاه-کوتـاهي-جرم-غلطي. لکه: په دې کښې زما څهٔ قصور دے؟

**قصور کول** :- خطا کول-ګناه کول-جرم کول.

**قصور کېدل** :- خطا کېدل-غلطي کېدل-ګناه کېدل-جرم کېدل.

**قصور وار** :- (___وا+ر)-[عف تـر-صـف-مذ-مو:ه]-ګناه ګار-مجرم-قصورمند.

**قصه** :- (قِ/قی+ (صْ)+صَ)-[ع-اس-مو-ج:صې]-حکايت-واقعه-مواسه-سترے.

**قصه اوږدول** :- خبره اوږدول-خبرې له طول ورکول.

**قصه پاکول** :-

**قصه ختمول** :- (۱) معامله ختمول-جګړه ختمول. (۲) څوك مړ کول.

**قصه پېښېدل** :- حادثه پېښېدل-ګرانه پېښېدل.

**قصه تېرول** :- واقعه بيانول.

**قصـه خلاصـېدل** :- (۱) حکايـت سـرته رسـېدل. (۲) معاملـه ختمېـدل-جګـړه ختمېدل.

**قصه خوان** :- (___خ+وا+ن) يا (___خا+ن)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان، (مو:ه]-قصه ويونکے-داستان ګو (ے) قصه ګو.

**قصه خواني** :- (ـــ خ+وا+ني) يا (ـــ خا+نِي)-[عف تر-اس-مو] قصه وېنه-قصه ګويي.

**قصه لاړه ګوهاتي له زۀ راغلم پراتي له** :- ماشومانو ته چې قصه خلاصه شي نو مور يا نيا څوک چې ورته قصه کوي. دا الفاظ وائي-مطلب دا چې قصه خلاصه شوه.

**بازارِ قصه خواني** :- (وِــــ د قصه خوانۍ بازار)

**په قصه کښې راتلل** :- جګړه يا معامله کښې دخل ورکول. لکه: تۀ په دې قصه کښې مه راځه!

**د قصه خوانۍ بازار** :- (ـــخا+نَ+ی+با+زا+ر)-[اس مع]-په پېښور ښهر کښې د يو مشهور بازار نوم.

**قصې** :- (ق/قی+(صٕ)+صې)-(۱) د "قصه" جمع ده. (۲) د "قصه" اضافي او مجروري وغېره (متغيره) شکل.

**قصې جوړېدل چاپسې يا چا پورې** :- خبرې جوړېدل-خرابې خبرې مشهورېدل-بدنامېدل.

**قصې قتارې** :- بېکاره اوږدې اوږدې خبرې.

**قصې کول** :- (۱) حکايتونه وئيل. (۲) واقعې بيانول. (۳) صفتونه کول-تعريفونه کول.

تل ئـــې په طلب وم اخـر خـوښ له خپــله بخته
هسې يارمې بيا موند چې عالم ئې قصې کاندې (خوشحال)

**قصۍ** :- (قِ/قی+صَ+ی)-[اس-مو]-د "قصه" تصغير دے-وړه قصه.

**قصۍ کول** :- (۱) قصه کول-داستان وئيل. (۲) بيان کول-حال وئيل.

**قصے** :- (قُ+صَے)-[اس-مع]- په پنځم پښت کښې د رسول پاك صلى الله عليه وسلم نيکۀ. هغۀ د کعبې مرمت کړے ؤ. او حج ئې قائم کړے ؤ. د عبد مناف پلار ؤ.

**قصيده** :- (قَ+صي+دَ)-[ع-اس-مو-ج:دې/صائد]-د شاعرۍ يو خاص صنف-چې يو اوږد نظم وي. چې قافيه او رديف لري. قصيده کم نه کم د پينځلسو شعرونو وي. او د زيات د پاره ئې څۀ حد نشته-د رسمي قصيدې پينځه برخې وي. (۱) تشبيب يعني تمهيد. (۲) حسن-تخلص يا ګريز. (۳) د ممدوح صفت. (۴) حسن طلب يعني په ښکلې طريقه خپل مقصد بيانول او دعا. (۵) پخوا په تشبيب کښې غزل شامل ؤ. او د غزل شعرونه د پينځونه واخلې تر يويشتو شعرونو پورې وي. وروستو غزل يو جدا صنف وګرځېدو. (۲) مدحه-د چا صفت.

**قصيده ګو(ے)** :- (ـــګو+ے)-[عف تر-اس-مذ-ج:يان]-(۱) قصيده ويوونکے-هغه شاعر چې د قصيدو د صنف شاعري کوي. (۲) صفتونه کوونکے-مدح ويونکے.

**قصيده ګوئي** :- (ـــګو+يي)-[عف تر-اس-مو]-(۱) په شاعرۍ کښې د قصيدې د صنف نظمونه جوړول. د قصيدې د نوع نظمونه وئيل. (۲) تعريفونه کول-صفتوته کول-مدحې وئيل.

**قصيده وئيل** :- (۱) د قصيدې د صنف نظم جوړول. (۲) د چا تعريفونه کول.

**قصيدې** :- (ق+صي+دې)-(۱) د "قصيده" جمع ده. (۲) د "قصيده" اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل.

**قصيدې وئيل، د چا** :- د چا تعريفونه کول-صفتونه کول د چا-مدحې وئيل.

**قصير** :- (قَ+صي+ر)-[ع-صف-مذ-مو:ه]-(۱) لنډ-کوتاه. (۲) کوتاهي کوونکے-ګنهګار.

**قضا** :- (قَ+ضا)-[ع-اس-مو-ج:ګانې]-(۱) حکم-هغه حکم چې د خدائے پاك د طرفه د مخلوق په باره کښې وي.

تـۀ چې پنـد وائـې ناصحـه و رحمـان تـه
شـکايت بـه د قضـا کـوې تـر کومـه

(۲) مرګ-اجل. (۳) تقدير-قسمت. (۴) ناغه-د کوم کار په خپل وخت کښې نۀ کېدنه.

**قضا راتلل** :- د مرګ وخت راتلل-مرګ راتلل.

**قضا کول** :- قضا شوے نمونځ ادا کول-(خج په "قضا" باندے دے)

**قضا مازديګر** :- (ـــما+ز+دي+ګَ+رٕ)-[اس-ظر]-(۱) د مازديګر نه وروستو هغه وخت چې د مازديګر نمونځ په کښې نۀ کېږي. (۲) د مازديګر د وخت اخرې برخه.

**قضا ماسپښين** :- (ـــما+س+پَ+ښِی/ښی+ن)-[اس-ظر]-هغه وخت چې د ماسپښين د نمانځۀ وخت تېر شوے وي-يا په تېرېدو وي.

**قضا و قدر** :- (ـــ (او)+قَ+دَ+رٕ)-[عف تر-اس-مذ]-هغه حکم کوم چې خدائے پاك د دنيا د هر څيز په حقله د ازل په ورځ کړے دے-تقدير-د ازل ليك-(په دې دواړو لفظونو کښې د معنو په لحاظ سره لږ شان فرق دے-قضا هغې حکم ته وائي کوم چې د ازل په ورځ مجملاً د ټول مخلوقات په حقله ټاکلے شوے ؤ. او د دويم لفظ (قدر) هغه دے-چې پرې دغه ازلي حکم (قضا) سره سم د تدريج په عمل کښې راځي-څکه وئيلے شو چې قضا "امر" حکم کوونکے دے او قدر "مامور" د حکم په ځائے راوړونکے-خو د ځينو په نزد د دې لفظونو معنې د دې نه بالعکس هم بيان شوي دي).

**د قضا فرښته** :- (ـــفَ+رِ+ښُ/شُ+تَ)-[عپ تر-اس-مو]-د مرګ فرښته-عزرائيل عليه السلام.

**رضا په قضا** :- (رَ+ضا+پَـــ)-چې څۀ په تقدير کښې ليکلي، يا څنګه چې د خدائے پاك حکم وي-په هغه رضامند "بودل".

**قضات** :- (قُ+ضا+ت)-[ع-اس-ج]-د "قاضي" جمع ده.

**قضاوت** :- (قَ+ضا+وَ+تٕ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) فېصله-شرعي فېصله يا حکم-د انصاف فېصله. (۲) د قضا شوي نمونځ يا روژې ادا کول. (۳) قاضي توب-فېصله کونه-د عدالت کار-ججي.

**قضاوت کول** :- فېصله کول-انصاف سره حکم کول-لکه: تاسو په خپله قضاوت وکړئ.

**د قضاوت مجلس** :- (ـــمَ+جُ+لِ+سٕ)-د ججانو مجلس.

**قضائي** :- (قَ+ضا+ئي)-[ف تر-]-(۱) د "قضا" مضافي شکل. (۲) پوره کول-ترسره کول-(په فارسي مرکباتو کښې، استعمالېږي)

**قضائي الهي** :- (ـــا+لا+هي)-د خدائے تعالى په حکم-د خدائے تعالى په مقرر کړي تقدير-عموماً د هغې مړي د اطلاع ورکولو په موقع وئيلے شي څوك چې په خپل طبعي مرګ مړ شوے وي. لکه: فلانے نن په قضائې الهي فوت شوے دے.

**قضائي حاجت** :- (ـــحا+جَ+تٕ)-[عف تر-اس-مذ]- حاجت پوره کول-حاجت سرته رسول-مجازاً: لويو بولو له تلل. لوے بول کول-اودس ماتې له تلل.

**قضائي عمري** :- (ـــعُ+مُ+ري)-[عف تر-اس-مو]-(۱) هغه نمونځ چې د هر وخت د فرض رکعتونو نه پس زياتي کولے شي چې تېر وخت د قضا شوي نمونځ بدل وګرځي-دا نمونځ د شورو کولو نه وروستو تل عمر له کولے شي. (۲) هغه نمونځ چې د ټول عمر د قضا شوو نمونځونو په بدل کښې کولے شي.

**قضائي مبرم** :- (ــُمُ+بْ+رَ+مْ)-[عف تر-اس-مذ]-(۱) پوخ حکم-نۀ بدلېدونکے حکم-هغه حکم چې هرومرو ئې تعميل کولے شي. (۲) مرګ-چې په هېڅ زور نۀ اوړي.

**قضايا** :- (قَ+ضا+يا)-[ع-اس-ج]-د "قضيه" جمع ده. (و ـــــ قضيه)

**قضيت** :- (قَ+ضي+ب)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) د سړي آله تناسل-ډکه غېن. (۲) نرۍ اوږده لښته. (۳) يو قسم نرۍ توره-تيره توره. (۴) متروکه-غمچينه-تازيانه.

**قضيه** :- (قَ+ضي+يَ)-[ع-اس-مو-ج: ئې/قضايا]-(۱) مطلوبه-غوښته. (۲) حکم-فېصله. (۳) پېښه-لانجه-شخړه. (۴) (منطق) هغه جمله چې د رښتياؤ او د دروغو دواړو احتمال لري-چې په علم نحو کښې ورته جمله، خبريه وائي. (۵) مقدمه-جګړه-دعوىٰ.

**قط** :- (قَ+طْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) د کهي د قلم څوکه په چاقو قطع کول.

خود په دا پوهېږې قلم لاښۀ شي له قطعه (خوشحال)

په قطع-بېخي-هرګز. په دې معنیٰ کښې "ف" سره راځي يعني "فقط"

**قط زن** :- (ــــزَ+ن)

**قط ګير** :- (ــــګي+ر)-[عف تر-اس-مذ]-هغه لرګے په کوم باندې چې به د کهي قلم د قط ور کولو د پاره کېښودے شه.

**قط ورکول** :- د کهي د قلم څوکه په چاقو سره په پلنوالي پرې کول-چې د ضرورت مطابق غټ خط پرې ليکلے شي.

**قطار** :- (قِ+طا+ر)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-ف-لينۍ-پره-ترتيب-سلسله-هيرِ (مروت)-ځير-څپان. (اصلاً د قاف زبر سره قطار وو-او معنیٰ ئې ده د اوښانو داسې ټولے چې په يو بل پسې په کرشه کښې ولاړ يا روان وي-په پښتو او اردو وغېره ژبو (جبو) کښې د قاف زور سره وئيلے شي).

**قطار** :- (ــــقَ+طا+ر)-[عپ تر-تف]-صف په صف-يو صف پسې بل صف په قطارونو کښې-په صفونو کښې.

**قطار** :- (قَ+طا+رْ)-[عپ تر-اس-مذ]-د کيرم په شان يوه لوبه چې په کانړو سره کولے شي.

**قطارونه** :- (قَ+لها+رَ+ؤ+نَ-[احمص]-په قطار کښې کونه-په صف کښې کونه-په صف کښې ودرونه.

**قطاره** :- (قَ+طا+رَ)-د "قطا" بدل شکل دے-چې د ځينو مغېره تورو سره راځي.

**قطاربدنه** :- (قَ+طا+رې+ؤ+نَ-[احمص]-په قطار کښې کېدنه-په صف کښې کېدنه-په صف کښې ودرېدنه-صف جوړونه.

**قطاع** :- (قُ+طا+ع)-[ع-اس-مذ]-(۱) د دائرې يوه ټکړه-چې د دائرې د دوه نيم قطرونو او د هغوي تر مېنځه قوس نه جوړېږي. (۲) د هر څيز يوه پرېکړې شوې ټکړه.

**قطاع** :- (قُ+طْ+طا+ع)-[ع-اس-ج]-د "قاطع" جمع ده. عموماً په "قاطع الطريق" کښې راځي. (و ـــــ قطار الطريق)

**قطاع الطريق** :- (قُ+ط+طا+عُ+طْ+طَ+رِي+ق)-[ع تر-اس-ج]-لار شوکوونکے-ډاکه مار-داړې مار-راهزن.

**قطاف** :- (قَ+طا+ف)-[ع-اس-مذ]-(۱) د انګورو (کورو) د شوکولو موسم. (۲) مېوه شوکول-(قطف)

**قطاف** :- (قِ+طْ+طا+ف)-[اس-فامذ-ج:ان]-(۱) مېوه شوکوونکے. (۲) د انګورو د شوکولو موسم.

سو د به څۀ مومي هغه باغبان له باغه

چې ونۀ ساتي ثمردار د قطاف نه (حافظ)

**قطامه** :- (قَ+طْ طا+مَ)-[ع-اس-مو-ج:مې]-ډېره زياته شهوتي ښځه-فاحشه بدکاره ښځه. (دا لفظ د قطم نه جوړ شوے دے چې معنیٰ ئې د شهوت زياتوالے ده).

**قطب** :- (قُ+طُ+بْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) د مېچنې محور-مولے-ماولے-ډېره-لمانځه (کاکړ). (۲) د قطب ستوري لور-شمال. (۳) د صوفيانو په اصطلاح کښې د اولياؤ د ټولونه لويه مرتبه.

قطب غوث نقيب عالي مقام وي

زۀ خاکپا يم د ابدالو د اوتادو (حافظ)

(۴) د زمکې د محور برنے اوښکتنے طرف-يعني قطب شمالي او قطب جنوبي چې قطبين هم ورته وائي. (۵) مشر-سردار. (۶) د علم هيئت يو اصطلاح. (۷) د نارينه ؤ په نومونو کښې راځي. (۸) شاهزاده. (هر کله چې دا لفظ بل کوم لفظ سره جوړه شي-نو په ط باندې غوړندے (سکون) لوستے شي- لکه قطب جنوبي (ق+طْ+ب-ــــ)

**قطب پله** :- (ــــپَ+لَ-(و ـــــــ د قطب خوا).

**قطب په سهېل** :- (ــــپَ+سُ+هې+ل)-[عپ تر-ظر]-(کټ يا کوټه وغېره) په داسې حالت کښې چې يو طرف ئې قطب (شمال) طرف ته او بل طرف ئې سهېل (جنوب طرف ته وي). لکه: دا کټ قطب په سهېل واچوه.

**قطب په قبله** :- (ــــپَ+ق+بُ+لَ-[عپ-تر]-د قطب او قبلې تر مېنځه لورے-شمال مغرب.

**قطب په نمر خاتۀ** :- (ــــپَ+نْ+مُ+رْ+خا+تُ)

**قطب په نور خاتۀ** :- (ــــپَ+ن+وَ+رْ+خا+تُ)-[عپ تر-ظر]-د قطب او د نمر خاتۀ تر مېنځه لورے-شمال مغرب.

**قطب جنوبي** :- (ــــجُ+نُو+بي)-[عف تر-ظر]-(۱) د زمکې د محور سهېلي سر. (۲) د زمکې هغه برخه کومه چې د زمکې د محور سهېلي اړخ ته، د دغې محور د سر په خواو شا کښې ده.

**قطب شمالي** :- (ــــش+ما+لي)-[عف تر-ظر]-(۱) د زمکې د (فرضي) محور قطبي سر. (۲) د زمکې هغه برخه کومه چې د زمکې د محور قطب طرف ته يا د دغې محور په خواؤ شاکښې ده.

**قطب العارفين** :- (ــــ(بُ+لْ عا+ رِ+فِي+ ن)-[عف تر-اس/صف]-د عارفانو سردار-د عزت يو لقب دے-چې د بزرګانو په حقله استعمالېږي.

**قطب مينار** :- (ــــمي+نا+ر)-[اس-مع]-په د هلي کښې يو مشهور مينار (مناره) دے چې قطب الدين ايبك تعمير کړے ؤ. قطب الدين ايبك په ډلي کښې په اول ځل د مسلمانانو بادشاهي قائمه کړه چې د هغۀ نه وروستو بيا په سوونو کاله په هند کښې بادشاهي وکړه. دا مينار ۲۳۸ فټه لوړ او په پاك و هند کښې د ټولونه لوړه مناره ده. د وبخ نه تر سره پورې د قران ايتونه په داسې انداز ليکلي شوي دي-چې د لاندې نه هم د بره سر الفاظ داسې ښکاري لکه چې نزدې وي-دا مينار ۲۷۲ پوړۍ لري.

**قطب نما** :- (ــــنُ+ما)-[عف تر-اس-مو]-د ګړۍ په شان يوه آله چې ستن ئې د مقناطيس په وجه تل د قطب ستوري په لور ورګرځي. چې د قطب لورے معلوم شي- نو نور ټول طرفونه ترې په اسانه معلومولے شي-لور ښوونے دا آله په سمندري په هوائي سفرونو کښې ډېره ښکارېږي.-(انګ-کمپاس).

**د جنوبي قطب براعظم** :- (ع پ تر-اس-مذ]-هغه لويه وچه کومه چې د زمکې سهېلي قطب په خواوشا کښې ده. دا وچه ډېره زياته يخه ده-او ابادي په کښې نشته.

**دقطب خوا** :- (ـــخ+وا)-[عپ تر-ظر]-د قطب لور-د قطب طرف.

**دقطب ستورے** :- (ـــس+تو+رَے)-[عپ تر-اس-مذ]-په اسمان کښې يو ستورے چې د شمال په لوري قائم دے-او خپل ځاے هېڅکله نه بدلوي. پخوا به د سمندر او د صحرا مسافرانو د دې ستوري په امداد خپله لار سموله.

**قطب الدين** :- (قُ+طْ+بُ+دْ+دي+ن)-(وـــــــ بختيار کاکي[رح]

**قطب الدين ايبک** :- (قُ+طْ+بُ+دْ+دي+ن+اَ+ے+ب+کْ)-[اس مع]-(ـــ۱۲۱۰] د سلطان شهاب الدين غوري يو مرئے او يو لوے جرنيل ؤ-سلطان د ډيلي بادشاه له شکست ور کولو نه پس قطب الدين ايبک په ډيلي کښې خپل نائب مقرر کړ-دهٔ تر بنګاله پورې ملکونه فتح کړل-او په ۱۲۰۶ کښې (د شهاب الدين د وفات نه پس) د ډيلي بادشاه شهٔ-دغه شان دهٔ په هند کښې په اول ځل د مسلمانانو د بادشاهۍ بنياد کېښود-چې وروستو بيا مسلمانانو په هند کښې په سوُونو کالو پورې بادشاهي وکړه-د لاهور په انار کلۍ کښې ئې مزار دے.

**قطبونه** :- (قُ+طْ+بُو+نَ)-د "قطب" جمع ده.

**قطبي** :- (قُ+طْ+بِي)-[عف تر-صف]-قطب (طرف) سره تعلق لرونکے-قطب ته منسوب.

**قطبي دائره** :- (ـــدا+ئے+رَ)-د زمکې هغه برخه کومه چې د زمکې د محور قطبي سر په خواو شاکښې ده داد انګ: "آرك ټك سرکل" ترجمه ده.

**قطبي ستورے** :- (ـــس+تو+رَے)-(وـــــ د قطب ستورے).

**جنوبي قطبي مناطق** :- د زمکې هغه برخه کومه چې د جنوبي (سهېلي) قطب په خواو شاکښې ده. (انګ: اَين ټريك ټك)

**شمالي قطبي مناطق** :- د زمکې هغه برخه کومه چې د زمکې د محور شمالي (قطبي) سر په خواؤ شا کښې ده. (انګ: آرك ټك سرکل)

**قطبيځ** :- (قُ+طْ+بِي+ (د) ز)-قطبيز-د قطب د لوري.

**قطبين** :- (قُ+طْ+بې+ن)-[ع-اس-ج]- دوه قطبونه-قطب شمالي او قطب جنوبي.

**قطر** :- (قَ+طَ+رْ)-[اس-مع]-په متحده امارات کښې د يو رياست نوم-چې دارالحکومت ئې "دوها" دے د تېلو ذخيرې لري.

**قطر** :- (قُ+ط+رْ)-[ع-اس-مذ-ج:قطرونه]-(۱) جې-ژی-حاشيه-څنډه. (۲) په علم هندسه (جيوميټرۍ) کښې هغه نيغ خط کوم چې د دائرې د مرکز نه تېرېږي-او دواړو غاړو ته د دغې دائرې تر محيط رسي-دا خط دائره په دوو برابرو برخو تقسيموي. (۳) هغه نيغ خط کوم چې د مربعې مستطيل يا د معين د يو ګوټ نه مخامخ بل ګوټ ته پورې رابنکلے شي-هم قطر بللے شي. (۴) کلکوالے-مضبوطي-ټينګتيا.

**د زمکې قطر** :- (د+ز+م+کې ـــ)-[عپ تر-اس-مذ]-زمکه (مځکه) هم غونډه ده- او محيط لري-په دې کښې يو فرضي خط منلے شوے دے-چې د زمکې د مرکز نه تېرېږي-او دواړو اړخونو ته د زمکې محيط ته رسي- اندازه لګولې شوې ده-چې د زمکې دا قطر تقريبًا اتهٔ زره ميله ده.

**نيمائي قطر** :- (ني+ما+ئي ـــ)-(وـــــــ نصف قطر).

**نيم قطر** :- (ني+م ـــ)

**نصف قطر** :- (ن+ص+ف ـــ)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه]-هغه خط کوم چې ديوې دائرې د مرکز نه د دغې دائرې تر محيطه پورې رابنکلے شي.

**قطرات** :- (قَ+طْ+را+ت)-د"قطره" جمع ده.

**قطران** :- (قَ+طْ+را+ن)-[ع-اس-مذ]-(۱) رانځرۀ-تارکول. (۲) د دوزخيانو جامه چې د قطران نه به جوړه شوې وي-دا ډېر زر اور اخلي.

هم قطران ئې اغوستن که دلے راشي
د جهان ژوندي به کل متوفی شي (حافظ)

**قطره** :- (قَ+طْ+رَ)-[ع-اس-مو-ج:رې/قطرات]-(۱) څاڅکے. (۲) ټکره ټوټه. (۳) لږ شان-پوټې شان-پوټسکے.

چې د زړۀ هغه به ووينې خوشحاله
خو يوه قطره که تبر شې تر دا خټه (خوشحال)

**قطره دوينو** :- (ـــد+وي+نو)-[عپ تر-اس-مذ]-د وينو څاڅکے.

**قطره قطره** :- (ـــقَ+ طْ+رَ)-[عپ تر-تف]-(۱) څاڅکے څاڅکے. (۲) لږ لږ-پوټې پوټې. (۳) ټکره ټکره.

**د زړۀ قطره** :- (د+ز+ړـــ)-[عپ تر-اس-مو-ج:رې]-(۱) د زړۀ ټکره-د زړۀ (وړه شان) ټوټه. (۲) ډېر زيات محبوب-ډېر زيات د خوښې څيز. (۳) زوے-بال بچ. (۴) معشوقه. (۵) شعر.

**قطرې** :- (قَ+طْ+رې)-(۱) د "قطره" جمع ده. (۲) د "قطره" اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دے.

**قطرې قطرې** :- ټکرې ټکرې-وړې وړې ټکرې.

**د زړۀ قطرې خوړول، په چا** :- چاله د خوراك د پاره د خپل زړۀ ټکرې ورکول. مجازاً ډېره زياته مينه لرل چاسره يا ډېر زيات په مينه او په ناز ساتل.

**قطری** :- (قَ+طْ+رَ+ی)-[عپ تر-صف]-هغه ښځه چې چا سره ئې ګډون نهٔ کېږي-ځان له-بېله.

**قطع** :- (قَ+طَ+عْ)-[ع-اس-مو-ج:قطعې]-(۱) پرې-پرې شوے-غوځ شوے. (۲) غوځه-تراش-برید-ټکره. (۳) طې-وهلے-(لار وغېره)

**قطع امید** :- (ـــاُ+مي+د)-[عف تر-اس-مذ]-امید پرې کونه-طمع غوځونه نا امیده کېدنه.

**قطع تعلق** :- (ـــتَ+عَ+لْ+لُ+قُ)-[عف تر-اس-مذ]-تعلق پرېکېدنه-تعلق غوځېدنه-تعلق شلېدنه-تړون نهٔ پاتې کېدنه.

**قطع تعلق** :- (ـــتَ+عَ+لْ+لُ+قْ)-[عف تر-اس-مذ]-تعلق پرېکېدنه-تعلق غوځېدنه-تعلق شلېدنه-تړون نهٔ پاتې کېدنه.

**قطع دائره** :- (ـــدا+ئے+رَ)-[عف تر-اس-مذ-ج:رې]-د يو دائرې هغه ټکره کومه چې د يو وتر او د قوس تر مېنځه جوړېږي.

**قطع رحم** :- (ـــرَ+حَ+مْ)-[عف تر-اس-مذ]-د خپلولۍ رشته غوځونه-د خپلولۍ نه انکار کونه-د رشته دارۍ رشته شلونه.

**قطع شوې مسافه** :- (ـــشُ+وې+مُ+سا+فَ)-وهلې شوې لار-هغه لار کومه چې طې شوه يا ووهلے شوه.

**قطع طرق** :- (ـــطُ+رې+ق)-[عف تر-اس-مذ]-لار وهنه-مجازاً: شوکه-ډاکه ماري-داړه ماري.

**قطع کلام کول** :- (ـــکَ+لا+م ـــ)-خبره غوځول-د چا خبره پرې کول-د چا د خبرې په دوران کښې خپله خبره کول. (عمومًا د معذرت په طور وئيلے شي-لکه يو کس لګياوي خبرې کوي او خبره ئې لاخلاصه کړې نهٔ وي- او بل په کښې خپله خبر کول غواړي- نو د معذرت د پاره وائي چې ستا قطع کلام کوم خو----- يا ستا قطع کلام کېږي خو----)

**قطع نظر** :- (ـــنَ+ظَ+رْ)-[عف تر-اس-مذ]-سوائې له دې نه-ما سوا له دې نه د دې نه علاوه-بغېر د دې نه ---- د دې خيال نه بغېر.

**قطع نظر کول** :- د کوم څيز خيال پرېښودل-کومه خبره ترك کول.

**قطع و برید** :- (ـــ(عو) بَ+رِي+د) يا (ـــ(طو)ـــ)-[عف تر-اس-مذ]-د دواړو

لفظونو معنې تقريبًا يو شان دے. دويم لفظ د تاکيد د پاره راوړے شي پرېکړه او غوڅه- تراش خراش-په کوم څيز کښې کمے زياتے کونه.

**اميد قطع کول** :- اميد غوڅول-اميد پرې ښودل-نا اميده کېدل.

**په قطع** :- (پَــــ)-ببخي-بالکل.

**تړون قطع کول** :- (تَ+ړُو+نـــــ)-تړون شلول-تعلق پرې کول-تعلق باقي نۀ پرېښودل.

**رابطه قطع کول** :- (را+ب+طَــــ)-تعلق شلول-تړون غوڅول-رابطه ختمول.

**رابطه قطع کېدل** :- (را+ب+طَــــ)-تعلق شلېدل-تړون پرې کېدل-تعلق تړون نۀ پاتې کېدل-غرض نۀ پاتې کېدل.

**روابط قطع کول** :- (رَ+وا+ب+طِــــ)-تعلقات شلول-تعلقات ختمول.

**مسافت روابط کول** :- لار وهل-سفر طې کول.

**قطعاً** :- (قَ+طْ+عَ+نْ)-[عف تف]-ببخي-بالکل-هرگز-کروت-رجور-له سره-پېټ. لکه: قطعًا داسې نۀ شي کېدے.

**قطعاً لازمه گڼل** :- بالکل ضروري گڼل-ببخي لازم گرځول.

**قطعات** :- (قِ+طْ+عا+تْ)-[ع-اس-ج]-د "قطعه" جمع ده.

**قطعه** :- (قِ+طْ+عَ-د "قطع" بدل شکل دے.

**په قطعه** :- ببخي-بالکل-پرېکړې.

له بنۀ مخه سره دوستي که څوک پوهېږي
دۀ لــه خــان سره پــه قطعه دښمني (حميد)

**قطعه** :- (قِ+طْ+عَ يا (قِ+طَ)-[ع-اس-مو-ج:عې]-(۱) ټکړه-پاره-حصه-برخه. (۲) د ملك څۀ برخه. (۳) شعر (په غزل يا په قصيده کښې د مطلع نه علاوه) د غزل يوه ټکړه چې کم نه کم دوه شعرونه وي او مضمون ئې يو شان وي يا يو بل سره تړلې وي-پارکے.

رباعي ده که قطعه که مثنوي ده
همگي واړه گــوهر دي در و لال (خوشحال)

(۴) د کاغذونو (يا د کاغذ په شان د بل کوم څيز) د شمار د پاره هم وايه شي. لکه: څلور قطعې عکسونه.

**قطعه بند** :- (ــــبَ+نْ+د)-[عف تر-اس-مذ-ج: ونه]- هغه بېتونه چې مطلب ئې بغېر د يو ځاے کولو نۀ ځرگندېږي-يا نۀ پوره کېږي- که ځان ځان له ولوستے شي نو بنۀ مطلب ترې نۀ خېژي.

**قطعه زمين** :- (ــــزَ+مِي+ن)-[عف تر-اس-مذ]-د زمکې ټکړه-د زمکې څۀ برخه.

**قطعي** :- (قَ+طْ+عِي)-[عپ تر-حرف]-بالکل-ببخي-په قطع.

**قطعي انکار کول** :- ببخي انکار-بالکل انکار کول-سکوټ انکار کول.

**قطعي فيصله** :- (ــــفِي+صَ+لَ)-[عپ تر-اس-مو-ج:لې]-پرېکړې فيصله-نۀ بدلېدونکے فيصله.

**قطعيت** :- (قَ+طْ+عي+يَ+تْ)-[ع-اس-مذ]-(۱) پرېکون-جدائي-پرې کېدنه. (۲) فيصله کن-قطع کوونکے حالت يا شکل.

**قطعيت موندل** :-

**قطعيت ميندل** :- اخري-قاطع-شکل موندل.

**قطغن** :- (قَ+طْ+غَ+نْ)-قدغن-وسته-کوره-بلون-بندېز.

**قطمور** :- (قِ+طْ+مُو+ر)-(وــــــ قطمير).

**قطمير** :- (قِ+طْ+مي+ر)-[ع-اس-مذ]-(۱) د قجورې په هډوکي نرے پوستکے (پرده). (۲) (اس مع) د اصحاب کهف د سپي نوم. (قطمورهم ورته وائي).

**قطن** :- (قُ+طْ+ن) يا (قُ+طُ+نْ)-[ع-اس-مذ]-(۱) پنبه-مالوچ. (۲) هغه زمکه چرته چې پنبه (بنۀ يا ډېره) کرلے شي-پنبه زار-پنبه کره-(انگ:کاټن).

**قطني** :- (قُ+طْ+ني)-[عف تر-صف]-(۱) د مالوچونه جوړ شوے-د مالوچونه جوړه شوې کپړه. (۲) هغه شرعي جائزه کپړه چې تنه ئې د رېښمو اوبوده ئې د سپنسو وي.

**قطور** :- (قَ+طُو+رْ)-[ع-اس-مذ]-د طب په اصطلاح کښې هغه دوائې چې په پوزه، غوږ يا سترگه کښې څاڅکے څاڅکے اچولے شي.

**قطى** :- (قِ+طَ+ی)-(۱) د "قطي" جمع. (۲) د "قطي" اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل.

**قطي** :- (قُ+طَي)-[ت-اس-مو]-(۱) وړوکے صندوق-ډبلے. (۲) چې د ميزري يا د شنو لښتو وغېره نه جوړ شوے وي- او مختلف قسم څيزونه په کښې کېښودے شي. لکه: د خوراك قطي. (۳) پټاري- پټار-هغه سر پوښه ټوکرى چې د ميزرو وغېره نه جوړه شوې وي-او پاروگان په کښې ماران ساتي.

**قطي** :- (قِ+تي)-[اس-مو]-(۱) وړوکے ډبلے. (۲) هغه ټوکرۍ چې د لښتونه جوړولے شي. (۳) هغه سر پوښه پچې. چې پاروگان په کښې ماران ساتي- پټارۍ-پېټار.

**قطياني** :- (قَ+طْ+يا+ني)-(وــــــ قطي).

**قطيفه** :- (قَ+طِي+فَ)-[ع-اس-م-ج:فې]-توليه-قديفه.

**قعده** :- (قَ+عْ+دَ)-[ع-اس-مو-ج:دې]-(۱) ناسته-کښېناستننه. (۲) په مانځه کښې هغه برخه چې په کښې بني ادم په ناسته لوسته کوي.

**قعود** :- (قُ+عُو+د)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) ناسته-کښېناستنه-(د سجود په مقابله کښې). (۲) په نمانځه کښې هغه حالت چې سرے په کښې په ناسته لوستل کوي.

**قعر** :- (قَ+عْ+ر)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) تل-ژوروالے-ځوروالے-ډونگے والے. (۲) کنده-ډونگے ځاے.

**قفا** :- (قَ+فا)-[ع-اس-مو-ج:گانې/وې]-(۱) ورمېږ-څټ.

د بــد گوئے به بېرون ژبــه لــه قفا وي
چې په ژبه ئې جاري حرف د جفا وي (حافظ)

(۲) دسرشا-مرگنړى-کوتك. (۳) شا-وروستو-په شا-پشلا.

څوك چې مخ په لمر روان شي خو دې گوري
چــې ســايه ورپسې درومي پــه قضــا (خوشحال)

(۴) شاپه شا-پشي شا-پشلا-څتمبړے.

**قفر** :- (قَ+فْ+ر)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-بيابان-مېره (چې اوبۀ نۀ لري)-ډاگه.

**قفس** :- (قَ+فَ+سْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-پنجره-کړکېمه (مروت)-کپس.

تر ژوندون په مرگ راضي شي
دا دنيا ورتـــــه قفس وي (خواجه محمد)

**قفسه** :- (قَ+فَ+سَ)-[ف-اس-مو-ج:ې]-(۱) يو خانه داره الماری. (۲) هغه الماری چې په کښې لوښي وغېره کېښودے شي. (انگ: کپ بورډ). (۳) هر هغه څيز چې د پنجرې په شکل وي.

**قفسه کتاب** :- (ـــك/کې+تا+ب)-[ف تر-اس-مو]-د کتابونو د کېښودو هغه الماری چې ورنۀ لري-د کتابونو شېلف.

**قفص** :- (قَ+فَ+صْ)-(وــــــ قفس).

**ققفاز** :- (قَ+فْ+قا+ز)-[اس-مع]-د يو ملك نوم-کاکيشيا.

**ققفازي** :- (قَ+فْ+قا+زَ+ی)د ققفازے تانيث دے.

**قفقــازے** :- (قَ+فُ+قـا+زَے)-[اس مـع-مـذ-ج: زي]-د قفقـاز د علاقــې اوسېدونکے-(نارينه) د قفقاز قبيلې سره تعلق لرونکے.

**قفقازي** :- (قَ+فُ+قا+زِي)-[اس مع]-(۱) هغه څيز وغېره چې د قفقاز ملك سره تعلق لري-كاكېشي. (۲) په قفقاز كښې جوړ شوے-كاكېشي.

**قفـل** :- (قُ+فُ/فُ+لْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]-جرنـده-جنـدره-تالـه-چـړك (كـړ) كُنجي (مسعود)-كُلپ (ګنډاپور).

**قفل ابجد** :- (ـــاَ+بْ+جَ+دْ)-[اعف تر-اس-مذ]-هغه جرنده (جندره) كومه چې كنجي نۀ لري-خو د دغې جرندې په كړو باندې مختلف قسمه توري ليكلي شوي وي-خو چې د دغو كړو په تاوَولو د تورو څخه يو خاص (پټ)لفظ جوړ كړے شي-نو دغه جرنده لرې شي.

**قفل اچول** :- څۀ څيز (بكس-ور وغېره)ته جرنده لګول-تاله كول-چړ كول.

**قفلي** :- (قُ+فُ+لي)-(وـــــــــ قلفي)

**ققرنات** :- (قُ+قُ+رْ+نا+ت)-[اس-مو]-د چرګو يو قسم چې عمومًا د تور رنګ وي-د دې يخني په پخلي كښې استعمالولے شي.

**قق قق** :- (قُ+قْ+قُ+قْ)-[اس صوت]-د چرګې اواز-كړك كړك-چق چق.

**ققنس** :- (قُ+قْ+نَ+سْ)-[يو-اس-مذ]-موسيقار-اورمارغۀ. د يو فرضي مارغۀ نوم دے-(اصلاً يوناني ګڼلے شي) په عربۍ كښې ورته ققنرس وائي-وائي چې د دې مارغۀ په مښوكه كښې درې سوه او شپېتۀ سوري وي. د هر سوري نه يو راګ راووځي-چې دا مارغۀ وړے شي-نو يو غرتـه مخ كړي-او پـه عجيبـه سرونو موسيقي خورول شورو كړي-د دې موسيقۍ په اثر مارغان ورتـه راجمع شي-چې ځيني پـه كښې دے ويني او وئي خوري-وائي چې د دې مارغۀ عمر زر كاله وي-ماده نۀ لري-چې د مرګ وخت ئې راشي-نو وچ ډكي لرګي ځان ته جمع كړي-او پـه كښې كښېني او پـه مستۍ كښې سندره شورو كړي-او هر كله چې د "پيك راګ" شورو كړي نو په دغو ډكو لرګو اور ولګي-اودے په كښې و سوځي-او ايري شي- بيا چې د خدا ے پاك په قدرت چې په دغو ايرو باران وشي. نو په كښې يوه اګۍ پېدا شي او څۀ موده پس له دغې اګۍ نـه بـل ققنس پېدا شي. (دا محض يوه فرضي قصه ده-خو شاعرانو په خپلو شعرونو كښې ډېره راوړې ده) (ځيني خلك د دې تلفظ (غلطۍ سره) "قَقْنَس" هم كوي)

چې عاشق په محبوباشي تنګ دې پر ېږدي
په اخـــلاص دې ځــان هيرے لكه ققنس (خواجه محمد)

**ققهار** :- (قُ+قَ+ها+ر)-(وـــــــــ قق قق)

**قل** :- (قُ+لْ)-[ع-جمله]-(۱) ووايه. (۲) د قرانِ پاك اخري سورتونه چې د "قـل" د لفظ نه شورو كېږي. يعني قـل هو الله-قـل اعـوذ بـرب الفلق او قـل اعـوذ برب الناس-چې اكثر د فاتحې په طور لوستلے شي.

**دقل رسم** :- (ـــرَ+سَ+مْ)-[اعپ تر-اس-مذ]-په ځينو خلكو كښې يو رواج دے چې د مړي په دريمه ورځ ورپسې ختم كوي-دې ته د قل رسم وائي.

**قـلا** :- (قَ+لا)-[اس-مـو-ج:ګانې]-(۱) قلعه-كوټ. (۲) د كـوم ځـا ے نـه چـاپېره لوړ دېوال. (اصلاً د "قلعه" بدل شكل دے).

**قلابند** :- (ـــ بَ+ نْ+د)-(۱) په قلا كښې راګېر-په قلعه كښې محصور. (۲) په قلا كښې محفوظ-د بادشاه او د فوځ په قلا كښې استوګنه نيول-چې د دښمن نه محفوظ شي.

**قلابندي** :- (ـــبَ+نْ+دي)-[اپ تر-اس-مو]-(۱) په قـلا كښې بند بېدنـه-پـه قـلا كښې دننه ګېرېدنه-محصورېدنه. (۲) قلا جوړونه-لوړے لوړے دېوالونه چاپېره كونه. (۳) په قلا كښې محفوظ كېدنه.

**قلا تاوول، د ځان نه** :- (۱) د هلكانو په لوبو كښې د ځان نه ګرد چاپېره كرښه راښكل-چې مخالف لوبغاړے دغې دائرې ته نۀ شي راننوتے. (۲) د ځان نه چاپېره كرښه راښكل او څۀ دم درود لوستل-چې پېريان جنات د دغې دائرې دننه عامل ته څۀ نقصان نۀ شي رسولے.

**قـلا چـاپېره كـول** :- (۱) لـوړے دېـوال چـا پېـره خېـژول-پـه لـوړے دېـوال سـره محفوظـول-لوړ دېـوال خېـژول. (۲) داسې اقـدام كـول-چې مخـالف يـا دښمن نۀ شي رارسېدے-د حفاظت انتظام كول.

**قلاوهل** :- لوړ دېوال (چار چاپېره) خېژول.

**لاس له قلا بندي، نيول** :- محاصره ماتول.

**قلاب** :- (قُ+لا+ب)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) د كبانو (مهيانو) د نيولو كونډه-نرګوښــه-نګـوښ-چنـګ. (۲) ټـګ-درغـل-قـاليجن-پـه كنـډه كښـې زوړندول.

**قلابي** :- (قَ+لا+بي)-[اعپ-اس-مو]-كوټه او ناكره څيز خرڅونه-دوكه بازي.

**قلابي** :- (قُ+لا+بِي)-[اعف-صف]-(۱) كوټه-ناسره-جعلي. (۲) كنډې والـه-كنډې دار.

**قـلات** :- (قَ+لاَ+تْ)-(اس مع-مذ]-په بلوچستان كښې يوه سيمه-او د دغې سيمې مركزي ښهر. (پخوا رياست ؤ-اوس په پاكستان كښې شامل دے).

**دقلات ولايت** :- (ـــو+لا+يَ+تْ)-د قلات رياست يا علاقه.

**قـلاچ** :- (قُ+لا+چ)-[ت-اس-مذ-ج: ونه]-د كڃ يو پخوانۍ پېمانه-چې دواړه لاسونه خوارۀ كړي-نو د يو لاس د ګوتو د سرنه د بـل لاس د ګوتو تر سره پورې فاصله يو قلاچ ګڼلے شي.

**قـلاچ** :- (قُ+لا+چ)-[اس-ت-صـف]-(۱) قـلاش-خـوار. (۲) سپېرۀ-منحـوس-بدبخته. (۳) مكار-دوكه مار-شېطان.

**قـلاده** :- (قِ+لا+دَ)-[ع-اس-مو-ج:دې]-د سپي يا د ګډ چېلي وغېره پـه مرۍ كښې د اچولو پټه-غړوندے.

**قلار** :- (قَ+لا+ر)-[صف-مذ-مو:ه]-(۱) قرار-په ارام- پـه سكون. (۲) چپ-غلے-خاموشه. (۳) ورو-په مزه. (اصلاً د "قرار" بدل شكل دے. په پښتو كښې (ر) او (ل) په خپله كښې ډېر بدلولے شي).

**قلارتيا** :- (۱) قرارے-قرار-ارام-سكون-اطمينان. (۲) چپه چپيا-خاموشي.

**په قلار** :- په مزه-ورو-په حوصله.

**په قلار قلار** :- (پَـــ قَ+لا+ر)-[اپ-تر-تف]-ورو ورو-په مزه مزه.

**قلارول** :- (قَ+لا+رَ+ؤ+لْ)-[مص]-(۱) چپ كول-غلے كـول-پـه سكون كول. لكه: ماشوم قلارول. (۲) په بحث كښې پاتې راوستل. (۳) جوش-غصه-قهر كمه ول يا لرې كول.

**قلارونـه** :- (قَ+لا+رَ+ؤ+نَ)-[احمص]-(۱) چپ كونـه-غلے كونـه. (۲) جـوش يـا غصـه د (دچا) سړونه. (۳) پـه بحث كښې پاتې راوستنه. (۴) منع كونه-اړونه.

**قلاروونكے** :- (ق+لا+رَ+وُو+ن+كَے)-[اس فا-مذ-ج:كي]-(۱) چپ كوونكے-غلے كـوونكے. (۲) پـه بحث كښـې پـاتې راوسـتونكے. (۳) جـوش يـا غصـه كمـوونكے يا سړوونكے. (۴) منع كوونكے.

**قلاره** :- (قَ+لا+رَ)-د "قلار" تانيث دے.

**قلاره قـلاري** :- (ـــقَ+لا+رِي)-[اپ تر-اس-مو]-بالكل امن او سكون-د شور

شر یا د جنګ جګړې نیشتیا-سره سما واتے-امن امان.

**قلاره قلاري "بودل"** :- امان امان "بودل" شور شر یا جنګ جګړه نهٔ "بودل".

**قلارے** :- (قَ+لا+رَے)-(و_____ قلارتیا)

**قلارے "بودل"** :- (و_____ قلاره قلاري بودل)

**قلارے راوستل** :- امن راوستل-شور شر ختمول.

**قلاربېدل** :- (قَ+لا+رِ+د+لْ-[امص]-(۱) چپ کېدل-غلے کېدل-په ارام کېدل (۲) منع کېدل- اوړېدل. لکه: زهٔ درته وایم چې مانه قلار شه.

**قلاربدنه** :- (قَ+لا+رِي+د+نَ-[احمص]-(۱) چپ کېدنه- غلے کېدنه-په ارام کېدنه. (۲) منع کېدنه-اوړېدنه.

**قلاربدونکے** :- (قَ+لا+رِي+دُو+ن+کَے)-[اس فا مذ-ج:کي]-(۱) چپ کېدونکے-غلے کېدونکے-په ارام کېدونکے. (۲) منع کېدونکے-اوړېدونکے-منع کېدونکے. لکه: هغه له دې کاره قلاربدونکے نهٔ دے.

**قلاش** :- (قَ+لْ+لا+ش)-[ف-صف-مذ-ج:ه]-(۱) خوار-کنګال-غلاش. (۲) سپېرهٔ-منحوس-بدبخت. (۳) مکار-شېطان-مفسد (۴) لوچه-بدمعاش. (۵) بې غېرته.

**قلاشي** :- (قَ+لْ+لا+شي)-[عپ-اس-مو]-(۱) غريبي- بې مالي- خواري. (۲) سپېرهٔ-نحوست-بدبختي. (۳) لوچه توب-بدمعاش. (۴) مکاري-مفسدي.

**قلاع** :- (ق+لا+ع)-[ع-اس-ج]-د "قلعه" جمع ده.

**قلاقند** :- (قَ+لا+قَ+نْ+د)-[اس-جم]-یو قسم متیائي-د کهوئے (پېروے) او د خوږو نه جوړېږي.

**قلب(۱)** :- (قَ+لْ+ب)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/قلوب]-(۱) زړهٔ-دل-خاطر. (۲) اړولے-نسکور. (دې لفظ اصل معنیٰ اړولے یا نسکور ده. زړهٔ ته هم "قلب" ځکه وائي چې دا په سینه کښې اړولے پروت وي).

**قلب(۲)** :- (قَ+لْ+ب)-[ع-صف مذ-مو:ه]-(۱) کوټه-ناسره. (۲) ټګ-درغل.

**قلب سره** :- (___سَ+رَ)-[عپ تر-صف]-کوټه اوکره.

جوهري قدروقیمت زده د جوهرو
قلب سره سره جدا کازرګر زر
(خوشحال)

**قلب والے** :- (___وا+لَے)-[عپ تر-اس-مذ]-(۱) کوټه توب. (۲) نسکور والے. (۳) درغلي-ټګي.

**قلب(۳)** :- (قَ+لْ+ب)-[اس-مذ]-د فوځ د مېنځ برخه.

**قلبه** :- (قُ+لْ+بَ)-[ف-اس-مو-ج:بې]-(۱) د پټي د اړولو د پاره یوې او په یوې پورې تړلي غويان-په جمع سره قلبه بللے شي. (۲) د قلبې غويانو ته هم (ځينې وخت) قلبه وائي.

چلوې ژبه په بېهوده خبرو
جغ را کارې له شېطان سره قلبه ئې (حافظ)

**قلبي** :- (قَ+لْ+ب+ي)-[عف-تر-صف]-(۱) زړهٔ سره تعلق لرونکے-زړهٔ ته منسوب. (۲) قلب (کوټه) سره تعلق لرونکے.

**قلب دوست** :- (___دو+س+ت)-[عپ-تر-اس-مذ-ج: ان]-رښتونے دوست-اخلاصمند دوست- خوږ دوست.

**قلبي دوستي** :- (___دو+س+ت+ي)-[عف تر-اس-مو]- هغه دوستي چې د زړهٔ څخه وي. رښتونې دوستي-خوږه دوستي.

**قلب ډاډ** :- (___ډا+د)-[د زړهٔ تقویت-د زړهٔ حوصله افزائي.

**قلب ډاډ مونډل** :- د زړهٔ حوصله مونډل-حوصله افزائي کېدل.

**قلپ** :- (قَ+لْ+پ)-(و_____ قلب (۲))

جوهري قدروقیمت زده د جوهرو
قلپ سره سره جدا کا زرګر زر (خوشحال)

**قلپ** :- (قُ+لْ+پ) یا (ق+لُ+پ)-(و- قفل)-(د "قفل" بدل او اړولے شکل دے).

**قلپ اچول، خولې ته** :- چپ پاتې کېدل-خاموشي اختیارول-هېڅ نهٔ وئیل یا هېڅ جواب نهٔ ورکول.

**قِلت** :- (ق+لْ+لَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) کمے-کماوخت-لږوالے. (۲) نهٔ پیدا کېدنه- نایابي.

**قِلت پیدا کېدل** :- کمے پیدا کېدل-کما وخت راتلل-د کوم څیز نه پیدا کېدل-(د وضاحت د پاره و_____ قلت پیدا کول)

**قلتبان** :- (قَ+لْ+تَ+با+ن)-[اس-مذ-ج:ان]-دیوث-داووس-بې غېرته سړے- هغه سړے چې ښځه ئې بدکاره وي-هغه پرې سره د پوهې سترګې پټوي-یا هغه سړے چې په خپله ښځه باندې پېشه کوي.

که څهٔ لږ و د برئې خرچ شته
په هزال، په قلتبان (خوشحال)

**قلتین** :- (قَ+لْ+لَ+ت+ي+ن)-[ع-اس-مذ-تثنیه]-دوه لوے خُمان (متونه) چې په کښې لس لس منه (دولس سوه عراقي (طل) اوبهٔ راځي. د شافعي مذهبو په نزد دا اوبهٔ پاکې وي-یعني که نجاست په کښې پرېوځي نو پلیتېږي نه-(د حنفیانو په نزد دا اوبهٔ پاکې نهٔ وي-د دوي په نزد د "ده درده" حوض اوبهٔ پاکې وي)

**قلزم** :- (قُ+لْ+زُ+مْ)-[اس-مع]-(۱) د یو سمندر نوم-چې د عربو او د مصر وغېر تر مېنځه دے-بحیره احمر سور سمندر یا درياب هم نومېږي.

تېر شو پرې کلیم او فرعون غرق شوله لښکرو
ښښه د صراط ور ښکاره شوې له قلزمه ده (حافظ)

(۲) مجازاً لوے سمندر.

بېړۍ ګرځي ببله کښې
په قلزم ګرځي جهاز (خوشحال)

(۳) پخوا د سینائي غرهٔ په خوا کښې یو ښهر یه هم وه.

**قلع** :- (قَ+لْ+عْ)-[ع-اس-مو]-پرېکونه-پرېکړه-شوکونه (دا لفظ عموماً قمع سره یو ځاے راځي)

**قلع وقمع** :- (___وَ+ق+مَ+عْ)-[عف تر-اس-مو]-پرې کونه-غوځونه-ختمونه-(د دواړو لفظونو تقریباً یو شان معنې دي دویم لفظ تاکیداً راځي).

**قلعه** :- (قَ+لْ+عَ) یا (قَ+لَ)-[ع-اس-مو-ج:ګانې]-قلا-کوټ. (اصلاً دا لفظ "قلعه" د قاف زېر سره دے)

**قلعه بالاحصار** :- (و_____ د بالاحصار قلعه).

**قلعه بند** :- (___بَ+نْ+د)-[عف تر-صف مذ-مو:ه]-(۱) په قلا کښې بند- په قلا کښې حصار-محصور-په قلا کښې د دښمن دلاسه ګېر شوے یا په خپله د خپل حفاظت د پاره په قلا کښې دننه شوے. (۲) د شطرنج په لوبه کښې یو چال یا حالت دے. خصوصاً هغه چال یا حالت چې بادشاه داسې خانې ته لاړ شي. چې قشت ورله نهٔ شي ورکړے کېدے.

**قلعه بېګي** :- (___بې+ګي)-(و_____ قلعه دار)

**قلعه شکن** :- (___شِ+ك+نْ)-[عف تر-صف مذ-مو:ه]-(۱) قلعه ماتوونکے-هغه پخوانی اله چې قلاګانې به پرې ماتولے شوے. (۲) هغه توپې، راکټونه وغېره چې د قلاګانو دېوالونه ماتوي.

**قلعه شکن توپه** :- [عپ تر-اس-مو-ج:پې]-هغه توپه د کومې ګولې چې د

قلاګانو دېوالونه ماتولے شي.

**قلعه نشین** :- (۱) په قلا کښې کښېناستونکے-قلعه بند-قلابند. (۲) هغه کس چې د يوې قلا دننه استوګنه لري.

**قلعې پرانستل** :- ملمع لرې کول-پټ راز ښکاره کول-غلا څرګندول.

**قلعې پرانستے کېدل** :- ملمع لرې کېدل-پټ راز ښکاره کېدل-غلا څرګندېدل. (اصلاً داردو محاوره ده-ځينې خلک ئې په پښتو کښې هم استعمالوي).

**قلعي** :- (قَ+لَ+ی)-[اس-مو]-د يو دات (فلز) نوم دے-چې عموماً په نورو داتونو خېژولے شي خصوصاً په مسينو او د تانبې په لوښو د دې تهه خېژولے شي.

**قلعي کول** :- (۱) په مسينو لوښو باندې د قلعي خېژول-سپينول. (۲) (د تيکو نه) مخ وغيره ښۀ کلک کلک وينځل. لکه: نن خو دې مخ ښۀ قلعي کړے دے.

**قلعي کېدل** :- (په مسينو لوښو وغيره د قلعي تهه ختل-سپينېدل.

**قلعي ګر** :- (ــــګَ+رْ)-(ف تر-اس صف-ج. ان. (مو: ه]- قلعي کوونکے-په مسينولو ښو باندې قلعي خېژوونکے. مسين لوښي سپينوونکے.

**قلف** :- (ق+ل+فْ) يا (قُ+لَ+ف)-[اس-مذ-ج: ونه]-د "قفل" مقلوب دے-قفل-تاله-جرنده-جندره. (عام خلک قلپ وائي).

**قلف اچول** :- (۱) جرنده اچول-جندره لګول-جندره کول-تاله اچول-تاله اچول. (۲) بندول-محفوظ کول.

**قلف اچول خلې ته** :-

**قلف لګول** :- خولۀ بندول-چپ پاتې کېدل-خبره نۀ کول-خولۀ نۀ پرانستل.

**قلف خلاصول** :- جرنده لرې کول-تاله لرې کول-په کنجۍ سره قفل لرې کول.

**قلف کول** :- (و_____ قلف اچول).

**قلفک** :- (قُ+لُ+فَ+کْ)-[اس-مذ-ج:ونه]-د قلف تصغير دے-وړوکے قلف-وړه جرنده-وړه جندره.

**قلق** :- (قَ+لَ+قْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) بې ارامي-بې چيني-ځله-پلټهندے نا قلاري-اضطراب. (۲) غم-اندوه-دوک. (۳) افسوس-پښېماني-حسرت.

**قلقل** :- (قُ+لْ+قُ+لْ)-[اس-صوت]-د صراحي (يا د بوتل) نه د کوم مائع څيز د را اړولو په وخت را پيدا کېدونکے اواز. (په شاعرۍ کښې د صراحي نه د شرابو د اړولو د اواز په حېث ډېر استعمالېږي).

**قلقله** :- (قَ+لْ+قَ+لَ)-[ع-اس-مو]-بې قراري-غلغله.

**قلل** :- (قُ+لَ+لْ)-[ع-اس-ج]-د "قُله" جمع ده. د غرۀ څوکې.

**قلم** :- (قَ+لَ+مْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/ان/اقلام]-(۱) هغه اله چې خط پرې ليکلے شي. خامه-ليکانه. (پخوا به دکهي نه جوړولے شۀ- اوس ئې نوي شکلونه راوتي دي-تهولو ته قلم وائي-خصوصاً فونتين پين چې په جيب کښې سا تلے شي). (۲) د يوې ونې کچه ښانګه-کومه چې د بلې ونې په غتمه ښانګه کښې په پرېکړي ځاے کښې لګولے شي. (۳) دغوړونو په خوا کښې وېښتۀ چې په قينچۍ يا په پاکۍ باندې لکه د قلم پرېکړي شوي وي. (۴) د تصوف په اصطلاح کښې "عقل اول" ته وائي. (۵) تحرير-ليک. ليک: په مجله کښې ما ستا ادبي قلم وليدۀ. (ر-ق)

**قلم امواج** :- (ــــاَ+مْ+وا+ج)-[عف تر-اس-مذ]-د خط يو قسم دے چې ليکلے خو داسې ښکاري لکه د اوبو چپې وي.

**قلم انداز** :- (ــــاَ+نْ+دا+ز)-زر زر ليکنه-په تادۍ سره قلم رانښکنه.

**قلم اندازي** :- (۱) زر زر ليکنه-په تادۍ سره قلم رانښکنه. (۲) د ليک نه غورځونه-په ليک کښې نۀ راوستنه.

**قلم اوچتول** :- (و_____ قلم پورته کول)

**قلم برداشته ليکل** :- بغېر د سوچ او فکر کولو ليکل.

**قلم بند** :- (ــــبَ+نْ+د)-ليکلے شوے-په ليک کښې راوستے شوے.

**قلم بند کول** :- په ليک کښې راوستل-ليکل.

**قلم بند کول (بيان)** :- په تانه يا عدالت کښې د ملزم بيان په ليک کښې راوستل.

**قلم پاک** :- (ــــپا+ک)-[عف تر-اس-مذ]-هغه کپړه چې کاتبان ورسره خپل قلم نه سياهي پاکوي.

**قلم پورته کول** :- قلم اوچتول-ليکل شوروکول-ليکل کول.

**قلم تراش** :- (ــــتَ+را+ش)-چاقو.

**قلم شکول / قلم رانښکل** :- (۱) ليک کول-ليکل. (۲) ليکلے شوے عبارت قطع کول-رد کول.

خپل دي کـه پردي دي قلم وڅـکوه په واړه
دور د فساد شو په خپل زوے ورور مه وياړه (خوشحال)

**قلم دان** :- (ــــدا+ن)-د قلمونو کېښودو صندوقچه.

**قلم رانښکل** :- (۱) ليک کول-ليکل.

چې قلم ئې د قسمت زما رانښکۀ
حرف ئې يو د خوشحالۍ نۀ ښکۀ
(حافظ)

(۲) په ليکلې شوي خط باندې خط رانښکل-ورانول-کټ کول.

**قلم رو** :- (ــــرَو)-بادشاهي.

**قلم قلم** :- (ــــقَ+لَ+مْ)-[اعپ تر-صف]-غوځ غوځ-ټکړې ټکړې.

**قلم کار** :- (ــــکا+ر)-[اعپ تر-صف-مذ-مو:ه]-مجازاً: ډېر ښکلے لکه چې په قلم جوړ شوے وي-ډېر ښائسته.

قدعرعره مو کمره
سر تر پايه قلم کاره خوشحال)

**قلم کول** :- د قلم په شان پرې کول-مجازاًا غوټ پرې کول-پرې کول-غوڅول قطع کول-کټول.

**قلم کېښودل** :- ليکل بندول-د ليکلو نه انکار کول-ليک نۀ کول.

**قلم ګرځول** :- د استاد په خوش خطه ليکلے شوي خط باندې (د شاګرد) خپل وچ قلم ګرځول- او په وچ قلم دغه شان د ليک مشق کول.

**قلم لرل** :- د ليکلو استعداد لرل. لکه: په پښتو هم قلم لري. (ر-ق)

**قلم لګول** :- د يو بوټي (ونې) نرۍ کچه ښانګه د بل بوټي (ونې) د پخې (غټې) ښانګې په پرېکړي ځاے کښې ورننه باسل او تړل دغه شان دا کچه ښانګه وده شوروکړي-او په دغه بوټي (ونه) کښې دويم قسم بوټے ولګي.

**قلم وهل** :- (۱) په قلم ليک کول-ليک کول-ليکل. (۲) د قسمت ليک کول-قسمت ليکل. (۳) په ليکلې شوي خط باندې کرښه رانښکل-محو کول. مجازاً: معاف کول-بخښل.

**قلم وهونکے** :- (ــــوَ+هُـو+ن+کَې)-[عپ تر-اس فا-مذ-ج:کي]-(۱) قلم چلوونکے-ليک کوونکے-ليکونکے-ليکوال- شاعر-اديب. (۲) د ازل ليک کوونکے-قسمت ليکونکے-(خداے پاک).

**ارباب قلم** :- (اَ+رْ+با+ب+ــــ)-(و_____ اهل قلم).

**الماس قلم** :- (اَ+لْ+ما+س ــــ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]-هغه قلم چې په سر

کښې ئې د الماس (هيره) وره شان ټکره لګېدلې وي. شيشې پرې پرې کولے شي.

**اهل قلم** :- (اَ+هـْل ـــ)-[عف تر-اس]-د قلم خاوندان-د قلم څښتنان-ليکوال-اديبان-شاعران.

**په زړۀ قلم کول** :- (۱) په زړۀ باندې غوڅه کول-زړۀ زخمي يا ژوبل (جوبل) کول-ډېر زيات خوږ يا تکليف رسول. (۲) په زړۀ باندې ليکل-تل ياد لرل. (۳) (شعر) مئينول.

**په قلم کول** :- ليکل- په ليک کښې راوستل.

**په قلم وهلے** :- (ـــ وَ+هـ+لے)-[عپ تر-صف]-په قسمت کښې ليکلے- د قسمت په ليک.

په نـام د تـا وم پـه قلم وهلے بـه د چـا وم

**د زړۀ په سر قلم کول** :- (وــــــــ پر زړۀ قلم کول.

**د قلم خاوند** :- (ـــ خا+ؤ+نْ+د)

**د قلم څښتن** :- (ـــ (ت)س َ+خَ/ش ْ+ت+نْ)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ان]-صاحب قلم-ليکوال-اديب-شاعر.

**د قلم سهو** :- (ـــ س َ+هـْ+وَ)-[عپ تر-اس-ج:وې]-هغه غلطي چې په ليک کښې واقع شي-(د ليکونکي اراده نۀ وي).

**د قلم لاندې** :- (ـــ لا+ن+دې)-[عپ تر-صف]-د حکم لاندې-ماتحت.

**د قلـم لانـدې راوسـتل** :- (۱) د حکم لاندې راوستل-پـه خپـل حکومـت کښـې شاملول. (۲) په ليک کښې راوستل-ليکل-په تحرير کښې راوستل.

**سر قلم کول** :- سر پرې کول-په توره باندې سر قطع کول.

**قَلَماً** :- (قَ+لَ+مَ+نْ)-[ع-تف]-په ليک کښې-په تحرير کښې-ليکلے شوے.

**قلماغ** :- (قَ+لْ+ما+غ)-[اصف-مذ-مو:ه]-بېهوده-هرزه-پوچ-چټي-کوټه.

**قلم تراش** :- (قَ+لَ+مْ+تَ+را+ش)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]-د قلم پرېکوونکي اله-چاقو-(عموماً هغې چاقو ته وئيلے شي چې را ماتېږي نه).

**قلم داد** :- (قَ+لَ+مْ+دا+د)-[عف تر-اس-مذ]-په هندسو کښـې ليکلے شـوے-پـه شمېر کښې راوستے شوے.

**قلـم داد کـول** :- شـمېرل-پـه شـمېر کښـې راوسـتل-شـمارل-پـه هنـد سـو کښـې ليکل-اعدادو شمار ليکل.

**قلمدان** :- (قَ+لَ+مْ+دا+ن)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونـه]- د لرګـي هغـه وړوکـے شـان صـدوقچه چـې پـه کښـې قلمونـه کېښـودے شـي. (عمومًـا د دواتونـو د کېښودو د پاره ځاے هم لري).

چې هر حرف ئې د نافې په څېر خوشبوئي وي
برکت مې پـــه خبردان پـــه قلمدان کــــړې (رحمان بابا)

**قلمـدان دوزارت سـنبالول** :- وزيـر کېـدل-د وزيـر پـه عهـده مقرربـدل. (نـن سـبا "پورټ فوليو" سنبالولے شي)

**قلمـدان وزارت** :- (ـــ وِ+زا+رَ+تْ)-[اف تـر-اس-مـذ]-هغـه خـاص قلمـدان چـې پخـوا بـه د بادشـاهانو د طرفـه وزيرانـو لـه ورکـړے کېـدۀ-(د نـن سـبا د قلمدان په ځاے د کاغذونو د کېښودو تبله ورکولے شي).

**قلمـرو** :- (قَ+لَ+مْ+رَ+وْ)-[اعف-تر-اس-مذ]-هغـه علاقـه چـې قلم يعنـي حکـم پرې چلېږي-د حکومت د لاندې-بادشاهي.

**د علومو په قلمرو کښې** :- د علومو په ملك يا سلطنت کښې-د علمونـو پـه دائـره کښې. د علمونو په دائره کښې.

**قلمستان** :- (قَ+لَ+مِ+س ْ+تا+ن)-[اف تر-اس-مذ-ج:ونه]-هغـه ځـاے چـې د ونو

بوزغلې پيدا کولے شي. (نرسري)

**قلم فرسائي** :- (قَ+لَ+مْ+فَ+رْ+سا+ئي)-[اعف تر-اس-مو]-د قلم سُولونه-قلم چلونه-ليك-ليکنه.

**قلم فرسائي کول** :- قلم سولول- ليك کول- ليکـل-(د عزت د پاره د کـوم مشـر د ليك په حقله وئيلے شي)

**قلم کار** :- (قَ+لَ+مْ+کا+ر)-[اعف تر-اس-مذ-ج:ان، (مو):ه)-د وسـپنې يـا فـولادي قلم سره په کاڼي يا دات کښې د کنستلو کار کوونکے-نقش ګر.

**قلمکاري** :- (قَ+لَ+مْ+کا+رِي)-[اعف تر-اس-مو]-د وسپنې يـا فـولادي څـوکې واله الې سره په کاڼي يا په فلز په لوښو وغېره کنستلوکار-نقش ګري.

**قلمونه** :- (قَ+لَ+مُو+نَ)-د "قلم" جمع ده.

**قلمونه اخېستل** :- د غوړونو په خوا کښې پرېښودې شوي ويښتـۀ پـه پـاکۍ سـره د قلم د سر شکل کښې اخستل.

**قلمي (۱)** :- (قَ+لَ+مي)-[اعـف تـر-صـفـ]-(۱) د قلم سره تعلق لـرونکے-قلـم تـه منسوب. (۲) تحرير-د لاس ليك سره تعلق لرونکے. لکه: قلمي کتابونه.

**قلمي اثار** :- (ـــ آ+ثا+ر)-[اعف تر-اس-ج]-هغه پخواني اثار کوم چې د لاس ليك پـه شکل کښې وي-پهلاس ليکلي شوي پخواني کتابونه يا دستاوېزونه وغېره.

**قلمي تعاون** :- (ـــ تَ+عا+وُ+نُ)-(وــــــ قلمي مرسته).

**قلمي تعاون کول** :- (وــــــ قلمي مرسته کول.

**قلمي جهاد** :- (ـــ ج+ها+د)-[اعپ تر-اس-مذ-ج:ونه]-د قلم يعني د تحريرونو، ليکونـو او مضـامين وغېـره پـه ذريعـه د کـوم مقصـد د حصـول د پـاره کوښښونه کول.

**قلم دوستي** :- (ـــ دو+س+تي)-هغه دوستي چې يـو بـل ئـې ليـدلے نـه وي. خـو خط کتاب سره قائمه وي-د خط کتابت دوستي.

**قلم شوره** :- (ـــ شو+رَ)-[اعپ تر-اس-مو-ج:رې)-(۱) هغه شوره کومه چې د قلمونو په شان جوړه کړے شوې وي. (۲) زميندارانو د شورې هغې سرې ته هم وائي-کومه چې د قلمونو په شکل کښې نۀ هم وي-يعني مبده يا دانې دانې وي.

**قلمي طاقت** :- (ـــ طا+قَ+تْ)-(۱) د قلم زور-د تحرير زور-د قلم ژور تـاثير. (۲) په اخبارونو د اداريو وغېره زور او ژور اثر.

**قلمي کتاب** :- (ـــ ک/کی+تا+ب)-[اعپ تر-اس-مذ-ج:ونه]-هغـه کتـاب چـې پـه لاس ليکلے شـوے وي (د چاپ شـوي کتـاب پـه مقابلـه کښـې)-عمومـاً د پخوانو کتابونو پحقله وئيلے شي.

**قلمي کول** :- په ليك کښې راوستل-ليکل.

**قلمي کېدل** :- په ليك کښې راوستے کېدل-ليکلے کېدل.

**قلمي ګوتي** :- (ـــ ګُ+تي)-[اعپ اس-ج]-هغه ګوتې چې د قلمونو پـه شـان وي-مجازاً ښکلې نرۍ اوږدې ګوتې.

**قلمـي مرسـته** :-(ـــ م+ر+س ْ+تَ)-[اپ تـر-اس-مـو-ج:تې]پـه کـوم کـار کښـې هغـه امداد کوم چې د قلم يعني د ليك په ذريعه کولے شي-د ليك پـه شـکل کښـې امداد.

**مرسته کول** :- د خپـل قلم يعنـي د ليکونـو پـه ذريعـه امـداد کـول-قلمـي تعـاون کول.

**قلمي ملګرتيا** :- (ـــ مَ+لْ+ګ+رْ+ت+يا)-[اعپ تر-اس-مو-ج:ګانې)-پـه کـوم کـار کښې د قلم سره يعني د ليك په ذريعه ملګرتيا او مرسته.

**قلمي ملګرے** :- (ـــ مَ+لْ+ګ+رَ+ے)-[اعپ تر-اس-مذ-ج:ري]-پـه کـوم کـار کښـې د قلم يعني د ليك په ذريعه ملګرتيا او مرسته کوونکے. لکه: د مجلې قلمي ملګري.

**قلمي (۲)** :- (قَ+لَ+مي)-(عف تر-صف)-(۱) هغه ځانګه يا ځانګي ښاخونه کوم چې د قلم په ذريعه پېدا کړے شوے وي. (۲) د قلم په ذريعه د لګولې شوي ځانګي مېوه. لکه: قلمي اَمْ. (۳) (بازاري) د کنځلو په طور حرامي يا حرامزاده ته هم وائي.

**قلمي(۳)** :-(قَ+لَ+مي)-(عف تر-صف)د "قلم" په شکل-د قلم په شان شکل لرونکے.

**قلنج** :- (قُ/قو+لَ+ن+ج)-[اس-مذ]-يو قسم سخت درد ود ے-چې په قلمو (کلمو) کښې پېدا کېږي-پيڼغ-کلنج.

**قلندر** :- (قَ+لَ+نْ+د+رْ)-[ف-اس-مذ-ج:ان]-(۱) فقير-ملنګ-خصوصاً هغه فقير چې د مال دولت پروائۀ لري-(او يو ځاے بل ځاے ګرځي).

تۀ پلۀ له مخه لر کړه زۀ ضامن يم

که اورنګ د زمانې قلندر نۀ کړي (رحمان بابا)

(۲) بې پيسې ټکې-خوار. (۳) (اس-مع)د پښتو يو پخوانے شاعر لـه قامـه اپريدے ؤ.

**قلندر کېدل** :- فقيري اختيارول-ملنګ کېدل.

**قلندر** :- (قَ+لَ+نْ+د+رْ)-[اس-مع]-قلندر اپريد ے-د ۱۱۵۰هـ د خواوشا د وخت شاعر د ے-د جمرود (باړې) په خواوشا کښې اوسېدۀ-د ميرانوم د دۀ په شعرونو کښې محبوب په طور راځي-ځکه قلندر سره د ميرا نوم هم اخستے شي.

**قلندرانه** :- (قَ+لَ+نْ+دَ+را+نَ)-[ف-صف]-(۱) د قلندرانو په شان-د فقيرانو دروېشانو په شان. (۲) بې پرواهي سره.

**قلندرانه ژوند (جوند) تېرول** :- د قلندرانو په شان ژوند (جوند) کول په ژوند (جوند) کښې د مال و دولت وغېره هېڅ ځيز پروا نۀ کول-که شته شته که نشته نشته.

**قلندرانه طبيعت لرل** :- د قلندرانو (ملنګانو) په شان خوي بوي لرل-بې پرواه "بودل" د مال دولت يا د بل کوم دنياوي عېش معاش پروا نۀ لرل.

**قلندره** :- (قَ+لَ+نْ+د+رَ)-[اس-مو-ج:ې/انې](۱) د "قلندر" تانيث د ے(۲) د "قلندر" بېدل شکل د ے-چې ځينو مغيره تورو سره راځي. لکه: دا کتاب مې له قلندره واخست. (۳) بې پروا-بې حيا. ښځه چې لـه---ودانګي نو قلندره شي.

**قلندري** :- (قَ+لَ+نْ+دَ+ري)-[ف-اس-مو]-فقيري-دروېشي-ملنګتوب.

**قلندري** :- (قَ+لَ+نْ+دَ+رِي)-[ف تر-صف]-(۱)د قلندرانو هسې-د مست فقير په شان. (۲) هغه چې قلندر سره تعلق لري- يا قلندر ته منسوب.

**قلندري ناره (نعره)** :- (ـــنا+رَ)-[فپ تر-اس-مو-ج:ې]-هغه خاص الفاظ کوم چې مست فقيران په زوره (په نعره کښې) وائي.

**قلندري ناره (نعره) کول** :- د مستو فقيرانو خاص نعره (چغه) وهل-لکه: فلانې قلندري ناره وکړه: "وئيل حق د ے پير حق د ے".

**قلنګ** :- (قَ+لَ+نْ+ګ)-[اس-مذ-ج:ونه]-(۱) ټېکس-باج-ماليه.

چې څوك لاس له سوده وکاړي زيان نشته

په ملنګ باندې قلنګ او تاوان نشته (رحمان بابا)

(۲) هغه رقم يا وظيفه چې څوك اخون يا شاعر يا ملنګ وغېره د کوم شته مند سړي نه وخت په وخت وصولوي. (۳) هغه رقم يا بل کوم ځيز چې د چا نه د خپل حق په طور په زور وصولولے شي.

زمکې قلنګ دې زوره ور د ے

زلمي ترې اخلې رالېږې تش پالنګونه (ټپه)

**قلنګ اخېستل** :- (۱) محصول وصولول-ټېکس وصولول-بياج اخېستل.

(۲) خپله مقرره رقم وغېره د چانه په زور وصولول.

مختورن ظالمان ډېر دي

چې اخلي قلنګــــــونه (خوشحال)

**قلنګي** :- (قُ/قو+لَ+ن+ګي)-[اس-مذ-ج:ان]-(۱) د چرګانو يو اعلى قسم-چې د جنګ د پاره ساتلے شي-کلنګي. (۲) اوږدو پښو واله.

**قلنګي چرګ** :- (ـــچ+رْ+ګ)-[اس-مذ-ج:ان](۱) اصيل چرګ-د چرګانو يو خاص قسم-چې له وجوده غټ او لوے لوے پښې لري. (۲) مجازاً: اوږدو پښو واله.

**قلوب** :- (قُ+لُو+ب)-[ع-اس-ج]-(۱) د "قلب" جمع ده. (۲) رحمان بابا واحد په طور هم استعمال کړے د ے.

يا تنــــور د ے يـــا دوکان د اهنګـــرو

چې په عشق کښې تصور کړم خپل قلوب (رحمان بابا)

**قله** :- (قُ+لْ+لَ)-[ع-اس-مو-ج:لې/قلل]-د غرڅوکه-پېز-د غرسر.

**قلي** :- (قَ+لِي)-[ع-اس-مو]-پوټاش.

**قلي** :- (قُ+لي)-[ت-اس-مذ-ج:ان]-(۱) مزدور-په مزدورۍ پېټے ورونکے. (۲) د رېل ګاډي د ټېشنونو مزدور (چې عموماً سور پټکے او قميص ئې نخښنه وي).

**قلي توب** :- (ـــتو+ب)-[ت پ-اس-مذ]-(۱) د قليانو کار-مزدوري-په مزدوۍ پېټے د يو ځاے نه بل ځاے ته وړل. (۲) معمولي او ادنٰى کار.

**قليچ** :- (قَ+لي+چ)-[اس-مذ-ج:ونه]-توره-شمشير.

**قليل** :- (قَ+لي+ل)-[ع-ف-مذ-مو:ه]-قلت واله-لږ: کم.

**قليل القامت** :- (ـــلُ+لْ+قا+مَ+تْ)-[ع-تر-صف-مذ-ج:ه]-د لنډ قد واله- مندرے.

**قليل المدت** :- (ـــلُ+لْ+مُ+دْ+دَ+تْ)-[ع تر-صف-مذ-مو:ه]-د ډېرې لږې مودې-د ډېر لږ وخت.

**قليل المقدار** :- (ـــلُ+لْ+م+قْ+دا+ر)-[ع تر-صف مذ-مو:ه]-ډېر لږ مقدار واله-ډېر لږ شان-پوټے شان.

**قليل الميعاد** :- (ـــلُ+لْ مي+عا+د)-(وـــــ قليل المدت).

**قليه** :- (قَ+لْ+يَ)-[ع-اس-مو-ج:ئې]-(۱) نرۍ نرۍ ږېږکړې او پخکړې يا سره کړې غوښه چې په کښې پياز او نورې مسالې کډې کړې شوې وي- تينې-تيپلې. (۲) پوخ کړے لرے چې په کښې پياز او مسالې اچولې شوې وي.

**قليه فروش** :- (ـــف/فُ+رو+ش)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان]-قليه خرڅوونکے- (د تشريح د پاره. (وـــــ قليه).

**قـم** :- (قُ+مْ)-[ع-جملـه]-(۱) پاسـه-ودرېږه-ولاړ شـه. (۲) را ژونـد ے (جوند ے) شه.

**قم باذن الله** :- (ـــب+ا+ذْ+ن+لْ+لا+ه)-[ع-جمله]-پاسه! د الله په حکم. (اصلاً د حضرت عيسىٰ عليه السلام د معجزې په بيان کښې وئيلے شي چې هغۀ په مړي ته ووئيل چې قم باذن الله! نو مړے به ژوند ے (جوند ے) شۀ.

**قـم بـاذني** :- (ـــب+ا+ذ+ني)-[ع-جملـه]- زمـا پـه اذن (يـاحکم) پاڅـه-يعنـې ژوند ے (جوند ے) شه- شاعرانو په خپلو شعرونو کښې استعمال کړے د ے-(د منصور خلاج په حقله خوش اعتقادو مشهوره کړې ده. چې هغۀ د قم باذن الله په ځاے په "قم باذني" مړي ژوندي (جوندي) کړي دي- خو دا درسته نۀ ده-په "قم بـاذني" باندې پيغمبران هم مړي نۀ شي ژوندي (جوندي) کولے-نور خلک په کوم حساب کښې دي).

**قمار** :- (قِ+ما+ر)-[ع-اس-مذ]-جواري-جوا بازي.

**قمار باز** :- (ـــبا+ز)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان]-جواري کوونکے-جوارګر.

نېك عمل د عـــاملانو نېك فــرزند دے
خداے څوك مه کړه شراب خور و قمار باز (رحمان بابا)

**قمار بازه** :- (ـــبا+زَ)-[عـپ تر-اس-مو-ج:زې]-جوارګره-جوارګره-جواري کوونکي (ښځه).

**قمار خانه** :- (ـــخا+نَ)-[عف تر-اس-مو-ج:نې]-هغه ځاے چرته چې جواري کېږي-د جوارۍ ځاے.

**قماري** :- (قِ+ما+رِي)-[عف تر-صف]-قمار (جوارۍ) سره تعلق لرونکے-قمار (جوارۍ) ته منسوب-جوارګر.

**قماري** :- (قُ+ما+رِي)-[صف]-قمار سره تعلق لرونکے-قمار ته منسوب. "قمار" په هند کښې د يو ښهر نوم ؤ د دغې ځاے عود ډېر مشهور وو. ځکه ورته عود قماري وائي.

**قماش** :- (قِ/قُ+ما+ش)-[ف اس-مذ-ج:ونه/اقمشه]-(۱) ټوکے-کپړه. (۲) رېښمين-ټوکې. (۳) مال متاع-مال اسباب.

کشميرى که نرکه ښځې واړه هېڅ دي
د مړدۍ ور څخـــه نشته هېڅ قماش (خوشحال)

(۴) د ګنجفې د يوې پتې نوم-چې "تاج" هم ورته وائي. (۵) صفت-جوهر. (۶) کار-پيشه.

بازګان په خپل قماش پوهېږي ښۀ (خوشحال)

**بد قماش** :- (بَ+د ـــ)-[عف تر-صف-مذ-مو:]-د خراب ټوکي نه جوړ-مجازاً: خراب فطرت او عادتونو واله.

**نېک قماش** :- (ن+ې+ك ـــ)

**خوش قماش** :- (خُ+ش ـــ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-د ښۀ ټوکي نه جوړ. مجازاً: ښۀ فطرت او عادتونو واله.

**قمبر** :- (قَ+م+بَ+ر)-(و ـــــ قنبر)

**قمچي** :- (قَ+م+چي)-[ف-اس-مو:اې]-چابك-متروكه-تازيانه-قمچينه.

**قمچينه** :- (قَ+م+چي+نَ)-(و ـــــ قمچين)-(ځينې خلک اړولے کړي او چمکين هم ورته وائي).

**قمر** :- (قَ+مَ+ر)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/اقمار]-سپوږمۍ ګاه. (د قمري مياشتو د دربـم تـاريخ نـه وروستو قمر بللے شي-د دې اول درو تـه مياشت- هـلال وائي). (قمر يعنې سپوږمۍ په حجم کښې د زمکې نه $\frac{1}{46}$ ده. قطر ئې ۲۱۲۰ ميله ده-د زمکې نه چا پېره خپل يو ګردش $29\frac{1}{2}$ ورځو کښې پوره کوي- ځکه د همېش د پاره د دې فقط يو مخ زمکې ته مخامخ وي. (يعنې مونږ ئې فقط يو مخ ليدے شو) دا په خپله روښانه نۀ ده. بلکې د نمر (نور) نه رڼا اخلي. له دې کبله کله خو مياشت شي او کله بدر-اوس خو بني ادم ور رسېدلے دے-او نوي نوي معلومات را روان دي.

**قمر النساء** :- (ـــرُ+ن+نِ+سا)-[ع تر-اس-مع]-(لفظي د زنانهٔ يا د ښځو سپوږمۍ) د زنانهٔ نوم.

**قمرو** :- (قَ+م+رو)-[اس-مو]-د زنانهٔ يو نوم چې د قمر النساء وغېره مخفف دے.

**قمري** :- (قَ+مَ+ري)-[عف تر-صف]-(۱) قمر سره تعلق لرونکے- سپوږمۍ ته منسوب. (۲) د کلونو هغه حساب چې سپوږمۍ سره تعلق لري-(د شمسي په مقابله کښې).

**قمري کال** :- (ـــکا+ل)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه)-هغه کال چې مياشتې ئې د سپوږمۍ سره تعلق لري-(په مقابله کښې د شمسي کال) سپوږمۍ خپل يو چکر په **۲۹۷۵۳** ورځو کښې پوره کوي. او قمري کال **۳۵۴** ورځو اتو ګېنټو او د **۴۵** منټو وي.

**قمري** :- (قُ+م+ري)-(ف-اس-مو-ج:انې]-فاخته-ګوګو شکته-کوکوړه-ګوګوړه- سپلمه-غمبرۍ-سر پوښتکه-کوکو-کوتره. (اصلاً په دې کښې ځينې د "فاخته" مختلف قسمونه دي).

**قمطرير** :- (قَ+م+طَ+ري+ر)-[ع-صف-مذ-مو-ه]- هغه کس چې تريو تندے ئې نېولے وي-پوس-عبوس-بړوس-کاړسائ-(اصلاً د دې لفظ معنې د سختې ورځې ده يا سپېره ورځ).

**قمع** :- (قَ+م+عْ)-[ع-اس-مو]-پرېکونه-غوټ غوڅونه-بېخ يستنه-بونسټ وښکنه-مات ګډ کونه-(عموماً "قلع" سره يو ځاے راځي)

**قلع قمع** :- (قَ+ل+عْ ـــ)-[ع-تر-اس-مو]-بېخ ايستنه-بنيادوښکنه-بونسټ وښکنه-ورکونه-خاتمه.

**قلع قلع کول** :- بېخ بنياد اېستل-بونسټ وښکل-بېخي ورکول-بېخي ختمول.

**قلع قلع کېدل** :- بېخ بنياد وتل-بېخي ورکېدل-بېخي ختمېدل-بونسټ وښکلے کېدل.

**قمقمه** :- (قُ+م+قُ+مَ)-[ع-اس-مو-ج:مې]-(۱) د شيشې ګوله-چې چتونو سره زوړندولے شي. (۲) وړوکے قنديل. (۳) بلف-د بجلۍ بلب.

**قمل** :- (قُ+مَ+لْ)-[ع-اس-جم]-سپېږه.

**قمه** :- (قَ+مَ)-[ت-اس-مو-ج:مې]-د پېش قوزې يو قسم دے-کټارۍ.

**قمه زن** :- (ـــزَ+نْ)-[ت ف تر-صف-مذ]-هغه سړے چې د محرم په ورځو کښې خپل ځان په "قمه" باندې زخمي کړي.

**قميص** :- (قَ+مي+ص)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-خت-پېښنۍ-کُرته.

**قميص قبا کول** :- د قميص نه قبا جوړول-مجازاً: قميص شلول.

مصلحت ئې د بلبل په کار کښې دا ؤ
چې صبـــا کړ د غنچې قميص قبـــا (خوشحال)

**قميص ګے** :- (ـــګے)-(اس-مذ-ج:ګي)(۱) وړوکے قيمص-د ما شوم قميص. (۲) لنډ قميص-هغه قميص چې د کار د پاره لنډ جوړولے شي.

**قنات (۱)** :- (قَ+نا+ت)-[اس-مذ-ج:ونه]-کاريز-د زمکې د لاندې رايستلې اوبۀ.

**قنات (۲)** :- (قَ+نا+ت)-[ت-اس-مذ-ج:ونه]-د تنبو يا د شاميانې نه چار چاپېره. لکه: د دېوال لګېدونکې پرده.

**قنات (۳)** :- (قَ+نا+ت)-[اس-مذ-ج:ان]-قناد-حلوائي-مټياياني جوړوونکے يا خرڅوونکے.

**قناد** :- (قَ+نْ+نا+د)-[ع-اس-مذ-ج:ان]-قند جوړوونکے-قندساز-مټياني جوړوونکے-حلوائي.

**قنادي** :- (قَ+نْ+نا+دي)-[عف تر-اس-مو]-د قناد کار-حلوائي توب-قند سازي.

**قناديل** :- (قَ+نا+دي+ل)-د "قنديل" جمع ده. (و ـــــ قنديل).

**قناطير** :- (قَ+نا+طي+ر)-د "قنطار" جمع ده. (و ـــــ قنطار)

**قناعت** :- (قَ+نا+عَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-صبر-په لږ څۀ (چې ميسر وي)- صبر کول او زياتو ته هڅه نۀ کول-سکتنه.

سلاطين به ئې له دره ګدايي کړه
قناعت که د فقير په زړۀ قرار دے (سعيد)

**قناعت بخش** :- (ـــبَ+خْ+ش)-[عف تر-صف مذ-مو:ه]-قناعت بخښونکے- قناعت وروکوونکے-صبر وروستونکے-صابر.

**قناعت کول** :- صبر کول-زیاتي (څیز وغیره) نۀ غوښتل-حرص نۀ کول.

**قناویز** :- (قَ+نا+وي+ز)-[ف-اس-مذ] -(۱) د یو قسم ریښمین ټوکي نوم-شمنروز-شمندروز. (۲) کوتر غاړے-د کونترړ سینه.

**قنبر** :- (قَ+مْ+بَ+رْ)-[اس-مع] -(۱) د حضرت علي کرم الله وجهه، یو مرئے ؤ چې بیا وروستو ئې ازاد کړے ؤ. (۲) د نارینۀ په نومونو کښې راځي. (په قنبر کښې د نون نه وروستو ب راځي-ځکه دغه نون په میم بدل شي-او قمبر تلفظ کېږي-ځکه ځیني خلک د قنبر په ځاے قمبر هم لیکي).

**قنبیل** :- (قَ+مْ+بي+لْ)-[ع-اس-جم] -زیړه خاوره چې د ګېډۍ چینجي وژني-(وجني)-کامبیله.

**قنج** :- (قُ+ن+جْ)-[اس-مذ-ج:ونه]-نازوادا-غنج-کېځ مکېځ.

**قـنج** :- (قُ+ں+ج)-[ف-صف-مذ-مو:ه] -(۱) بېهوده-پرزه-چتې-خوشے. (۲) مکر-فریب-درغلي.

**قنجوغه** :- (قَ+ں+جو+غَ)-[ف-اس-مو-ج:غې] -هغه یار چې د سور شاته پروت وي-کنجوغه-اسپنډوکے.

**قنجي** :- (قُ+ں+جي)-[رو_______ کنجي)

عشق مې هسې قلف په زړۀ وهلے نۀ دے
چــې پرانست شي د پنـدونو په قنجو (علي خان)

**قند** :- (قَ+نْ+د)-[ع-اس-جم] -(۱) مصري-نبات-چیني (بوره). (۲) شکره-ګوره.

**قنداني** :- (قَ+نْ+د)-[ع-اس-جم] -(۱) مصري-نبات-چیني (بوره). (۲) شکره-ګوره.

**قند داني** :- (___دا+ني)-هغه لوښے چې په کښې قند کېښودے شي-چیني داني-چیني دان.

**قند سازي** :- (___سا+زي)-[ف تر-اس-مو] -قند جوړونه-چیني یا مصري جوړونه.

**قند سیاه** :- (___س+یا+ه)-[ف تر-اس-جم] -ګوره-ګُړه.

**قند مکرر** :- (___ مُ+کَ+رْ+رَ+رْ)-[عف تر-اس-مذ] -(۱) هغه قند (چیني یا مصري) کومه چې دوه ځله صفا کړے شي-ډېر صفا او اعلی قند. (۲) مجازاً: د معشوقې شونډې. (۳) دښۀ شعر یا د ښۀ بیان دوباره وړاندې کونه.

**قنداغ** :- (قُ+نْ+دا+غ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه] -قنداخ-کنداخ-د ټوپک هغه برخه چې په اوږه لګولے شي-کنداغ-کنداخ-لېچے.

**قندز** :- (قُ+نْ+دُ+زْ)-[اس-مع] -(۱) په ترکستان کښې د یوې علاقې نوم چې قندز ئې دارالحکومت هم دے-پخوا به ئې ورته خندوز هم وے-د دغې ځاے د یو سیند نوم هم دے. (۲) د قندز د علاقې د یو ځناور نوم چې شکل ئې د سپي په شان وي د څرمنې نه ئې پوستینونه جوړولے شي-له دې کبله دغه قسم پوستین ته قندز وائي.

**قنـدو** :- (قَ+نْ+دو)-د "قنـد" جمع اضافي او مجروري وغیره (متغیر) شکل. لکه: د قندو نه زیاتې خوږې شونډې.

**د قندو شیره** :- (___شي+رَ)-[عپ تر-اس-مو-ج: رې] -د چیني یا د ګوړې نه ټینګ پوخ کړے شربت-د قندو قوام.

**د قندو کارخانه** :- (___کا+ر+خا+نَ)-[اپ تر-اس-مو-ج:نې] -د چیني کارخانه.

**قنده** :- (قَ+نْ+دَ)-د "قند" بدل شکل چې ځینو مغیر تورو سره راځي.

هغه شونډې چې شیریني دي تر قنده
ما هیڅ فیض ځنې بیا نۀ موند بې کنځلو (رحمان بابا)

**قندهار** :- (قَ+نْ+دَ+ها+ر)-[اس-مع] -په افغانستان کښې یو مشهور او ډېر زوړ ښهر-چې د افغانستان په سهېل کښې د بلوچستان سرحد ته نزدې واقع دے-د قندهار د صوبې دارالحکومت دے.

**قنـدي** :- (قَ+نْ+دي)-[ف تر-صف] -(۱) د قندوسره تعلق لرونکے-قندو ته منسوب. (۲) قند واله-قند لرونکے.

**جغندر** :- (___ج+غ+نْ+د+رْ)-[ف تر-اس-جم] -هغه چقندر چې قند لري-او قند ترې جوړولے شي.

**قندیل** :- (قِ+نْ+دي+ل)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/قنادیل] -(۱) فانوس-د رڼا فانوس چې چت سره زوړندولے شي-د شیشې نه جوړ شوے هغه ظرف (لوښے) چې په کښې د تېلو ځاے او باتۍ وي-دا بل کړے شي-او چت کښې زنځیر سره زوړند کړے شي-ځینو لغویانو دا د کندیل معرب ګڼلے دے ځکه د ق زور سره هم لوستے شي. اوس ترې لالټین او قمقمه هم مراد اخستے شي. (۲) د غشو د کېښودو یو خاص قسم تیر دان. (۳) (پ) سورے-سیورے.

**قندیل چي** :- (___چي)-[عف تر-اس-مذ-ج:ان] -هغه سړے چې د قندیل (یا د لالټین وغیره) د بلولو کارئې په ذمه وي. (پخوا به په جوماتونو کښې قندیلونه ډېر وو-ځکه د قندیلچیانو ضرورت هم ؤ).

**بحري قندیل** :- (بَ+حْ+رِي___)-[ف تر-اس-مذ-ج:ونه] -په سمندر کښې د رڼا مینار. (انګ: لائټ هاؤس).

**قنطار** :- (قِ+نْ+طا+ر)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/قناطیر] -(۱) د سرو سپینونه ډک کړے دغوا ګوډے د سروسپینو ټوپ یا ډېرې-انبار. (۲) یو خاص وزن ته هم وائي-د ځینو په نزد دا د سلو کلو ګرامو برابر دے.

که مالك شي د قنطار صبر ئې نۀ وي
د یوې ژبې په زیان حزین خاطر شي (حافظ)

**قنوت** :- (قُ+نُو+ت)-[ع-اس-مذ] -د حکم مننه-فرمانبرداري-اطاعت-غاړه کېښودنه.

**دعائي قنوت** :- (دُ+عا+ئي___)-[عف تر-اس-مو] -د یوې خاص دعا نوم د چې د ماسخوتن په نمانځۀ کښې د وترو اخري رکعت کښې لوستے شي-دا دعا د اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ نه شورو کېږي.

**قنوط** :- (قُ+نُو+ط)-[ع-اس-مذ] -ناامېدي-بې اسرې کېدنه-نا امېده کېدنه-مایوسي.

ته چې معطل ناست ئې تعطیل نخښه د قنوط ده
طمع مــګر نۀ لــرې د دوست لـــه استقباله (حافظ)

**قو** :- (قُو)-[اس-مذ] -یو مارغۀ-د مرغابو له قسمه دے خو د مرغابو نه ډېر غټ وي.

**قـو** :- (قُـو)-[اس-صوت] -(۱) یو اواز دے-چې د کونترو د الوزولو د پاره په زوره زوره کولے شي. (۲) د "قـو" په شان اواز-چې ناڅاپه د چا په غوږ کښې وکړے شي چې هغه پرې وویرېږي-بَوْ. (۳) د کوڼ سړي یا نا اوریدونکي سړي ځان ته د متوجه کولو د پاره د "قو" اواز په زوره ایستے شي.

**قوا** :- (قُ+وا)

**قواي** :- (قُ+وا+ي)-[ع-اس-ج] -د قوت جمع ده-قوتونه- طاقتونه قواوې.

**قوات** :- (قُ+وا+ت)-[ع-اس-] -د "قوة" جمع ده.

**قـــوارع** :- (قَ+وا+رِ+عْ)-[ع-اس-ج] -(۱) د قارعــه جمــع ده-مصـیبتونه-تکلیفونه. (۲) د قرآن مجید هغه سورتونه کوم چې د مصیبت په وخت بیا بیا لوستے شي.

**قواره** :- (قَ+وا+رَ)-[ف-اس-مو-ج:رې] (۱) د ټوکي یوه ټوټه-د ټوکي غوڅه کړے

شوې ټوټه. (۲) مجازاً: قدقامت. (۳) شکل-قيافه-کرۀ ورۀ-جوله (قندهار)

**قوازه** :- (قَ+وا+زَ)-[اس-مو-ج: زې]-د دېوال وغېره خېژولو د پاره هغه اډه چې ګلکار پرې د پاسه ودرېږي او کار کوي.

**قواعد** :- (قَ+وا+عِ+دْ)-(۱) د "قاعده" جمع ده-قاعدې-ضوابط. (۲) بنيادونه-اصول. (۳) صرف و نحو-ګرېمر-(د ژبې (جبې) قاعدې. (۴) د فوځيانو د صحت د پاره ورزش-پرېټ.

**قواعد دان** :- (ـــدا+ن)-[عف تر-اس مذ-ج:ان]-(۱) د قواعدو پوهان-په قاعدو طور طريقو وغېره پوهېدونکے. (۲) د فوځي ورزش په طريقو پوهه. (۳) فوځي چې د جنګ په طور طريقو پوهه وي-تربيت يافته فوځ. (۴) د ژبې (جبې) په صحيح ډول د وئيلو په روچارو پوهه-په ګرېمر پوهه.

**قواعد دانه** :- (ـــدا+نَ)-[اس-مو-ج:نې]-د "قواعددان" تانيث دے.

**قواعد ګاه** :- (ـــګا+ه)-د ورزش مېدان-د پرېټ مېدان.

**قوافل** :- (قَ+وا+فِ+لْ)-د "قافله" جمع ده-(وـــــــ قافله).

له نېستي وهستي ته له هستي ونېستي ته
کاروانونه دي چــــلېږي قـــوافله قـــوافله (خوشحال)

**قوافي** :- (قَ+وا+فِي)-د "قافيه" جمع ده. (وـــــــ قافيه)

**قـــوال** :- (قَ+وْ+وا+ل)-[ع-اس-مـذ-ج: ان]-(۱) خـوش ګفتـار-ښـکلې خبـرې کوونکے. (۲) هغـه سندرغاړے چې په ټولي کښې سوچه او صوفيانه نظمونه او شعرونه وغېره په يو خاص انداز سره وائي-سرود خوان-يغنې. (۳) د خبرو مړنے-خبر لوڅے-ژبور (جبور)

**قوالي** :- (قَ+وْ+وا+لِي)-[عف تر-اس-مو]-(۱) د قوالانو په جمع سره په مجلس کښې سوچه نظمونه او د شاعرانو صوفيانه کلام په خاص انداز سره وئيل. (۲) د صوفيانه او سوچه نظمونو وغېره د سندر غاړو په ګډه سره د وئيلو مجلس.

**قوام** :- (قَ+وا+م)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) راستي-رښتيا. (۲) قامت-شکل و صورت. (۳) (وــــــ قِوام)

**قوام دين** :- (ـــدِي+ن)-[عف تر-اس-مذ]-د دين ستن-لوے عالم او فاضل سړے.

**قوام و معيشت** :- (ـــد ، مَ+عِي+شَ+تْ)-[عپ تر-اس-ج]-د روزۍ پېدا کولو ذريعې.

**قـوام** :- (قِ+وا+م)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]-(۱) اصـل-ختـه-اصـليت-مـاده-خمبيـره. (۲) شيره-ټينګ شربت(۳) هغه څيز چې بل کوم څيز پرې ټينګ وي-ستن-نظام.

**قوام جوړېدل** :-

**قوام راتلل** :- په پخولو کښې د شربت ټينګېدل-په پخېدونکي شربت کښې سلېښ او ټينګ والے پېدا کېدل.

**قواميس** :- (قَ+وا+مِي+س)-[ع-اس-مذ]-د "قاموس" جمع ده.

**قوانين** :- (قَ+وا+نِي+ن)-[ع-اس-ج]-د "قانون" جمع ده. قانونونه-دستورونه-قاعدې-ټاکلې قاعدې-ضابطې.

**د طبيعاتو قوانين** :- (دَ+طَ+بْ+عِ+يا+تو ـــ)-[عپ تر-اس-ج]-د فطرت قوانين.

**نظامي قـوانين** :- (ن+ظْ+ظا+مِي ـــ)-هغـه قـوانين کـوم چې د کـوم ملك يـا د ادارې انتظام سره تعلق لري- د چلولو دستورونه.

**قواو** :- (قُ+وا+ؤ)-د "قوا" اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل.

**دقــواو تــوازن** :- (ـــتَ+وا+زُ+نْ)-[عـپ تـر-اس-مـذ]-د قوتونـو تـول-(دواړو طرفونو)-د قوتونو برابر دے.

**قواے** :- (قُ+وا+ے)-[ع-اس-ج]-د قوت جمع ده-قوتونه-قواوے.

**قواے** :- (قُ+وا+ئے)-[اف تر-اس-ج]-د "قوا" مضافي شکل دے-(د فارسۍ په اضافي مرکباتو کښې استعمالېږي).

**قواے امدادي** :- (ـــا+مْ+دا+دي)-[عف تر-اس-ج]-هغه لښکرې چې د بل کوم لوے لښکر د امداد د پاره لېږلے شي-امدادي فوځ.

**قواے حيواني** :- (ـــحې+وا+ني)

**قواے حيوانيه** :- (ـــحې+وا+نِی+یَ)-[عف تر-اس-مذ]-هغه قوتونه يا قواوے چې تعلق ئې زړۀ سره ګڼلے شي-لکه خوښي (خوشحالي) او غصه.

**قواے خمسه** :- (ـــخَ+مْ+سَ)-[عف تر-اس-ج]-پنځه قوا يا قوتونه-پنځه حواس.

**قواے طبعي** :- (ـــطَ+بْ+عِي)

**قواے طبعيه** :- (ـــطَ+بْ+عِي+یَ)-[عف تر-اس-ج]-هغه قوتونه يا قواوے چې تعلق ئې ځيګر سره ګڼلے شي-هغه دا دي جاذبه-ماسکه-هاضمه-دافعه- ناميه او مولده.

**قواے فطرت** :- (ـــف+طْ+رَ+تْ)-[عف تر-اس-ج]-د فطرت قوتونه.

**قوائے کار** :- (ـــکا+ر)-[عف تر-اس-ج]-د کار کولو قوتونه.

**قوائے نفساني** :- (ـــنَ+فْ+سا+نِي)

**قوائے نفسانيه** :- (ـــنَ+فْ+سا+نِي+یَ)-[عف تر-اس-ج]-هغه قواوے چې دماغ سره تعلق لري-دا لس دي-پنځه په کښې ظاهري دي-يعني لامسه-شامه-باصره-سامعه-ذائقه-او پنځه باطني دي-يعني حس مشرك خيال-وهم-حافظه او متعکره.

**قــوت** :- (قُو+وَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/قواوے، قـوا/قـوي)-(۱) طاقت-زور-توان-قدرت-مجال تاب-برم-سېك-متره. (۲) امداد- مدد- پشتي. (۳) حس لکه: د بويولو قوت (قوت شامه) د څکلو قوت (قوت ذائقه) وغېره. (۴) (طبيعات) هغه زور کوم چې يو ساکن څيز په حرکت کښې راولي-او متحرك څيز ودرومي. (۵) مضبوطوالے-استحکام.

**قوت ارادي** :- (ـــا+را+دي)-[عف تر-اس-مذ]-د ارادي قوت- د بني ادم هغه قوت چې اراده (نيت) را لړ زوي-او بيا په دغه اراده باندې د عمل کولو طاقت.

**قوت باصره** :- (ـــبا+صِ+رَ)-[عف تر-اس-مذ]-د ليدلو قوت- هغه قوت په کوم چې په رنګونو او صورتونو وغېره کښې تميز کولے شي. (سترګو سره تعلق لري-او د باصرې يا د ليدلو حس هم ورته وائي).

**قوت باه** :- (ـــبا+ه)-[عف تر-اس-مذ]-د شهوت قوت-د جماع قوت.

**قـوت بخش** :- (ـــبَ+خْ+ش)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-قوت ور کوونکے-طاقت ور کوونکے-زور زياتوونکے.

**قوت جاذبه** :- (ـــجا+ذِ+بَ)-[عف تر-اس-مذ]-د جذب کولو او د نمي وغېره د راښکلو او د وچولو قوت-د خوراك د جذب کولو قوت.

**قوت حافظه** :- (ـــحا+ف+ظَ)-[عف تر-اس-مذ]-د ياداشت قوت-هغه قوت کوم چې هغه خبره شکل رنګ وغېره کوم چې په ظاهري حواسو بني ادم ته حاصلېږي-ياد ساتي-(دماغ سره تعلق لري).

**قـوت دار** :- (ـــدا+ر)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-(۱) قوت لرونکے-طاقت لرونکے-مقوي. لکه: طبيب ورله قوت دار څيزونه ورکړل. (۲) زور واله-طاقتور-قوتناك.

**قوت دأس** :- (ـــ د+اَ+سْ)

**دأس قوت** :- (د+اَ+سْ ـــ)-[عپ تر-اس-مذ-ج: دَ اسونو]-د يو اس قوت يا طاقت-د مشينونو وغېره د قوت د اندازې د پاره يوه پيمانه (اکائي) ده. انگ: هارس پاور.

**قوت دفاع** :- (ـــ د+فا+ع)

**قوت مدافعت** :- (ـــ مُ+دا+فِ+عَ+تْ)-(وـــــــ د دفاع قوت).

**قوت ذائقه** :- (ـــ ذا+ ئِ+قَ)-[عف تر-اس-مذ]-د څکلو قوت-هغه قوت چې په خولۀ کښې د کوم څيز خوند او مزه ښکاره کوي. (ژبې/جبې سره تعلق لري او د ذائقې حس هم ورته وائي).

**قوت سامعه** :- (ـــ سا+مِ+عَ)-[عف تر-اس-مذ]-د اورېدلو (اروېدلو) قوت-هغه قوت چې مختلف قسمه اوازونه اوري او په کښې تميز او بېلتون کوي. (غوږونو سره تعلق لري-او د سامعې يا د اورېدلو حس هم بللے شي).

**قوت شامه** :- (ـــ شا+مْ+مَ)-[عف تر-اس-مذ]-د بويولو قوت-هغه قوت چې د مختلفو قسمو د څيزونو بوي (بوئين) محسوسوي. او پکښې فرق او بېلتون کوي. (پوزې سره تعلق لري او د شامې يا د بويولو حس هم ورته وائي).

**قوت الظهر** :- (ـــ (تُ+ظْ+ظَ+هْـ+ر)-[ع تر-اس-مذ]-(۱) د ملا قوت-د ملې زور. (۲) ملا تړ.

**قوت لامسه** :- (ـــ لا+مِ+سَ)-[عف تر-اس-مذ]-په تماس (وجود سره لگېدلو) سره د کوم څيز موجودگي شکل و صورت نرمي-سختي-گرموالے او سوړوالے وغېره معلوموي-دا قوت د بني ادم د وجود په هر ځاے او اندام کښې موجود دے-خو د گوتو په سرونو کښې د ټولونه زيات وي-دې ته د لامسې حس هم وائي.

**قوت ماسکه** :- (ـــ ما+سِ+کَ)-[عف تر-اس-مذ]-هغه قوت کوم چې خوړلے شوے خوراك په معده (گېډه) کښې محفوظ ساتي- (پخواني طب سره تعلق لري).

**قوت متخيله** :- (ـــ مُ+تَ+خَ+يْ+يِ+لَ)-[عف تر-اس-مذ]-د تخيل يا د تصور کولو قوت-د خيال قوت-هغه قوت کوم چې محسوس کړے څيز، په ذهن کښې محفوظ ساتي.

**قوت متصرفه** :- (ـــ مُ+تَ+صَ+رْ+رِ+فَ)-[عف تر-اس-مذ]-ځينې صورتونو له ځينو معنو سره نسبت ورکوونکے قوت.

**قوت مدافعه** :- (ـــ مَ+دا+فِ+عَ)-[عف تر-اس-مذ]-د دفع کولو يا د مدافعت قوت-د مقابلې قوت.

**قوت مدرکه** :- (ـــ مُ+دْ+رِ+کَ)-[عف تر-اس-مذ]-درك لگوونکے-د دريافت او د معلومولو قوت-چې عام طور سره ورته پوهه- فهم وغېره وائي. (قوت "دراکه" هم ورته وائي).

**قوت مقننه** :- (ـــ مُ+قَ+نْ+نِ+نَ)-[عف تر-اس-مذ]-د قانون جوړولو طاقت.

**قوت مميزه** :- (ـــ مُ+مَ+يْ+يِ+زَ)-[عف تر-اس-مذ]-د تميز او بېلتون کولو قوت- هغه قوت چې د فرق کولو-پېژندلو (پېجندلو) کار کوي.

**قوت مؤلده** :- (ـــ مَو+ل+دَ)-[عف تر-اس-مذ]-د ماشوم د پېدا کولو قوت.

**قوت ناك** :- (ـــ نا+ك)-[عپ تر-صف-مذ-ج:ه]-قوت واله-د زور خاوند - طاقتور.

**قوت نما** :- (ـــ نُ+ما)-[عف تر-اس-مذ]-هغه اله چې د سړي زور پرې معلومولے شي.

**قوت واهمه** :- (ـــ وا+هِـ+مَ)-د تصور يا د خيال قوت-هغه قوت د کوم په بنا چې بني ادم سوچ او فکر کوي.

**قوت هاضمه** :- (ـــ ها+ضِ+مَ)-[عف تر-اس-مذ]-د خوراك د هضمولو قوت-د هضم کولو قوت-(طب سره تعلق لري).

**انساني قوت** :- (اِ+نْ+سا+نِي ـــ)-[عپ تر-اس-مذ]-د بني ادم طاقت-بشري طاقت. د بني ادم د مختلفو اعضاؤ د کار طاقت. لکه: دا کار د انساني قوت نه باهر دے.

**حېواني قوت** :- (حې+وا+نِي ـــ)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]-هغه قوت چې حېواناتو سره مخصوص وي-د ځناورقوت.

**ددفاع قوت** :- (د+د+فا+ع ـــ)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) وـــــ د مدافعې قوت. (۲) د دښمن د حملې نه د ځان د بچ کولو قوت-د دفاعي فوځ او د دفاع د پاره پکارېدونکي سازو سامان شمېر يا مقدار.

**دزړۀ قوت** :- (دَ+زْ+ړۀ ـــ)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه]-د زړۀ زور-د کار کولو قوت-د زړۀ طاقت-اطمينان-تسله.

**دزړۀ قوت حاصول** :-

**دزړۀ قوت موندل** :- (۱) حوصله زياتېدل-همت زياتېدل. (۲) په زړۀ کښې اطمينان پېدا کېدل.

**دقوت خاوند** :- (ـــ خا+ؤ+نْ+د)

**د قوت څښتن** :- (ـــ (ت) سَ+خْ/شْ+تَ+نْ)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ان]-د زور خاوند-زور قوت واله-طاقتور.

**روحاني قوت** :- (رُو+حا+نِي ـــ)-[عپ تر-اس-مذ]-هغه قوت چې روح سره تعلق لري-د بزرگ سړي (د بزرگۍ په وجه) د هغۀ د روح هغه قوت کوم چې عام وگړو ته حاصل نۀ وي-او هغه په دغه قوت عجيبه عجيبه کارونه سرته رسولے شي.

**عسکري قوت** :- (عَ+سْ+کَ+رِي ـــ)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه]-فوځي قوت-(د فوځ شمار-د جنگ مختلف قسمه سامان وغېره)

**هوائي قوت** :- (هَـ+وا+ئِي ـــ)-[عپ تر-اس-مذ-ج:ونه]-په هوا کښې د جنگېدلو قوت-(د جنگي جهازونو په هوا کښې د جنگ سامان او د هوائي فوځ شمېر وغېره).

**قوت** :- (قُو+ت)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/اقوات]-خوراك-خواړۀ-شومه-خرومه. (۲) رزق-روزي.

**قوت حاصلول** :- خوراك حاصلول-خواړۀ پېدا کول.

**قوت لايموت** :- (ـــ لا+يَ+مُو+ت)-[ع تر-اس-مذ]-دومره خوراك کول چې فقط د ژوندي (جوندي) پاتې کېدلو د پاره بس وي. دومره لږ خوراك چې بني ادم پرې هيله ژوندے (جوند) پاتې کېدے شي.

**قوتناك** :- (قُو+وَ+تْ+نا+ك)-[عف تر-صف مذ-مو:ه]- قوت لرونکے-قوت واله-طاقتور زوروَر+زور واله.

**قوتي** :- (ق+ُت+يْ)-(وـــــ قطي).

**قوچ** :- (قُو+چ)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]-گډ (چې خصي شوے نۀ وي)-هنده-مينده. ايرړے گډ-جنگي گډ چې ښکر لري.

**قوچك** :- (قو+چَ+كْ)-[ت-اس-مذ]-د "قوچ" تصغير-وړوکے قوچ-وړوکے هير ړے گډ-غوچك.

**قوده** :- (قَو+دَ)-[ف-اس-مو-ج:دې]-(۱) د گيا-خېد وغېره دومره مقدار چې د يو لاس په غېږ کښې راشي-گېدۍ.

**قور** :- (قُـو+ر)-[ت-اس-مـذ]-وسله+اسلحه. (عمومًا په "قورخانه" کښې استعماليږي)

**قور خانه** :- (ـــ خا+نَ)-[ت ف تر-اس-مو-ج:نې]-د وسلو کېښودو کوټه-اسلحه خانه.

**قورت** :- (قو+ر+تْ)-[ت-اس-جم]-وچ کړے پنیر-قروت.

**قورت** :- (قو+ر+تْ)-(و ـــــــ غوړپ)

**قورت کول** :- (و ـــــــ غوړپ کول)

**قورچي** :-(قو+ر+چي)-[ت-اس-مذ-ج:ان](۱) لوهار-اهنگر(۲) د اسلحه خانې محافظ.

**قورغندل** :- (قو+ر+غَ+نْ+د+لْ)-[اس-جم]-یو ازغن (اغزن) بوټے چې ډېر تریخ وي. (وائي چې د دوزخیانو خوراك په وي).

**قورمه** :- (قو+ر+مَ) [ت-اس-مو-ج:ونه](۱) یو قسم پخکړے دے-غورمه.(۲) غوښه چې پخه کړے شي ښوروا ئې وي خو په کښې سبزي وغېره نۀ اچوي. (ځینې خلک په کښې د چنړو دال هم اچوي)-دا په دعوتونو کښې پولاؤ د پاسه اچولے شي.

**قورمه پلاؤ** :- (ـــ پُ/پو+لا+ؤ)-پولاؤ چې ورسره قورمه هم وي. (و- قورمه).

**قوري** :- (قُو+ري)-[ف-اس-مو]-چاینك-چائې داني.

**قوریه** :- (قو+رِ+یَ)-[اس-مو-ج:ئې/گانې)-بوزغلے.

**قوز** :- (قُو+ز)-(ف-صف)-کُب-(د ملاو غېره) باهرته وتې برخه.

**قوز پشت** :- [ف تر-صف- مذ-مو:ه]- هغه چې ملا کښې کب لري-کوبے-کُبے.

**قوس** :- (قَو+س)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/اقواس]-(۱) لینده-کمان. (۲) د اسمان د نهم برج نوم چې د لیندې په شکل گڼلے شوے دے. (۳) د شمسي کال د یوې میاشتې نوم. (۴) د دائرې د محیط یوه ټوټه. (۵) د بوډۍ ټال.

**قوس دار** :- (ـــ دا+ر)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-قوس لرونکے-د قوس په شکل د لیندې په شکل.

**قوس قزح** :- (ـــ قُ+زَ+حْ)-[عف تر-اس-مو]-د بوډۍ ټال-سره او شنه-سره او زرغونه (اصلاً د قزح معنٰی "سره" ده-خو دا تشه سره نۀ وي بلکې اووه رنگونه لري)-(د زیاتې تشریح د پاره د بوډۍ ټال).

**قوس نما** :- (ـــ نُ+ما)-[عف تر-صف]-د قوس په شان-د قوس په شکل-د لیندې په ډول-قوسي.

**قوسي** :- (قَو+سِي)-[عف تر-صف]-(۱) د قوس (لیندې) سره تعلق لرونکے-قوس ته منسوب.

**قوسین** :- (قَو+سي+ ن)-[ع-تثنیه]-دوه قوسونه-دوه لیندې مجازاً لنډه فاصله-ډېر نزدې.

**قوش** :- (قُو+ش)-[ت-اس-مذ]-هر ښکاري مارغۀ لکه بازجره وغېره خو عمومًا شاهین ته او خاص طور سره باز ته وائي. (ځینې ورته "قوش" معدوله واو سره هم وائي).

**قوش باز** :- (ـــ با+ز)-[ت ف تر-صف مذ-مو:ه]-(۱) قوش ساتونکے-شاهین یا باز ساتونکے. (۲) میر ښکار.

**قوش چي** :- (ـــ چي)-(و ـــــــ قوش باز)

**قوش خانه** :- (ـــ خا+نَ)-[ت ف تر-اس-مو-ج:نې]-هغه ځاے چرته چې بازان یا شاهینان ساتلے شي.

کــه ئې غم د هــوس کا د زمــــان نۀ کا
که ئې مري په قوشخانه کښې څو دینار (خوشحال)

**قوصر** :- (قَو+صَ+رْ)-[اس-مذ]-یخ باد.

**قوصر کېدل** :- یخ باد وهل-یخنی وهل.

چې وهلے دے مظلوم د اَه قوصر دے
مـــه کړه طمع د صحت له هغه ریشه (حمید)

**قوطي** :- (قُو+طي)-[ت-اس-مو]-ووړوکے صندوق-ټیم-د ټیم نه جوړ شوے ووړوکے ډبلے-قوتي.

**قوغالے** :- (قَو+غا+لَے-[اس-مذ-ج:لي]-(۱) ووړوکے شان ډوغل-کوغالے. (۲) هغه ډوغل چې په کچړه کښې جوړ کړے شي-دغه کوغالے د غوړو نه ډکولے شي.

**قوقو** :- (قُو+قُو)-[اس-صوت]-(۱) د چرگ اواز. (۲) د گوگو شتکې اواز.

**قول** :- (قَو+ل)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/اقوال]-(۱) خبره-سخن-گفت-ویه. (۲) وینا-د چا (هوښیار سړي) د خولې وینا. (۳) وعده-لوظ-اقرار. (۴) قسم-سوگند. (۵) یو قسم راگ چې د فارسي سره ځینې جملې په کښې د عربي هم شاملې دي. (۶) یو قسم راگ چې امیر خسرو ایجاد کړے ؤ.

**قول اخېستل** :-

**قول اغېښتل** :- وعده اخېستل-اقرار اخېستل-د وعدې پابندي کول.

**قول او فعل یو "بودل"** :- هغه سړے چې وینا او عمل ئې یو شان وي-یعنې چې څۀ وائي هغه شان کوي هم گفتار او کردار یو شان بودل.

**قول عهد** :- (ـــ عَ+هَ+دْ)-[ع تر-اس]-د دواړو لفظو معنٰی یو شان دي-دویم لفظ د تاکید د پاره راوستے شي.

و نـــور چـــا وتـــه وران مـــه وایـــه خوشـــحاله
چـــې پـــه قـــول عهـــد وران شـــو وران هغـــه

**قول فېصل** :- (ـــ فَے+صَ+لْ)-[عف ر-اس-مذ]-فېصله کوونکې خبره-هغه خبره چې څۀ بحث یا جگړه ختمه کړي.

**قول کول، چاسره** :- وعده کول-لوظ کول-ژبه (جبه) کول.

**قول ماتول** :- لوظ ماتول-د لوظ نه گرځېدل-وعده خلافي کول.

تـاوې نـور بـه قـول مـات نـۀ کـړم سـوگند دے
پـه سـوگند سـوگند دې لاځـۀ بهتـر مـات کـړ
(خوشحال)

**قول نامه** :- (ـــ نا+مَ)-[عف تر-اس-مو-ج:ې]-اقرارنامه-لوظ نامه.

**قول ورکول** :- (۱) قسم خوړل-د وعدې وغېره د پخلې د پاره بل سره لاس ملاوؤل. (۲) قسم ورکول-د قسم په غرض د چا په لاس باندې خپل لاس وهل. (۳) لوظ کول-وعده کول-پوخ عهد کول-(عموماً په دې کښې وعده کوونکے خپل لاس د هغې کس په لاس وهي چا سره چې وعده کوي).

**قول (او) فعل** :- (ـــ (لو) فِ+عْ+ع+لْ)-[عپ تر-اس-مذ]-وینا او عمل-وئیل او کول.

**قول و قرار** :- (ـــ (لو) قَ+را+ر)-[عپ تر-اس-مذ]-د دواړو لفظونو یو معنې دي-دویم لفظ د اولنې د تاکید د پاره راغلے دے-لوظ قول.

**قول و قرار کول** :- لوظ قول کول-پوخ عهد او وعده کول.

**قول** :- (قو+ل)-[ف-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) دره (د غرۀ)-(۲) ناله-چور-کتے (جداران)-خوړ.

**قول** :- (قُو+ل)-[ت-اس-مذ]-د لښکر یوه څانگه-جناح.

**قول اردو** :- (ـــ اُر+دُو)-د لښکر یوه څانگه-د فوځ یو بازو.

**قولاً** :- (قو+لاَ+نْ)-[ع-تف]-په وینا کښې.

**قولاً او فعلاً** :- (ـــ اَو+ف+ع+اَ+نْ)-د قول (وینا) په لحاظ سره او د فعل (عمل) په لحاظ سره-په وینا او په عمل کښې په گفتار او په کردار کښې.

**قولبه** :- (قو+ل+بَ)-(و ـــــــ قلبه).

**قولنج** :- (قو+لَ+ن+ ج)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-د گېډې د دردیو قسم-د گېډې

سخت درد-پينغ-پينيغ-کلنج-د باد ګولې درد.

ډېر زحمت په وخت د مني پيدا کېږي

لکـــه سل تبــــه قــــولنج بلابتر (خوشحال)

**قولنګ** :- (قو+لَ+ں+ګْ)-[اس-مذ-ج:ونه]-دټوپك تماچې هغه پرزه کومه چې په زور سره کار توس وهي او په پټاخه اورلګوي-کوترے.

**قولنګ راښکل** :- د ټوپك کوترے راښکل-او ډز کولو ته تيار بدل-ټوپك ډز ته تيارول.

**قولنګے** :- (قو+لَ+ں+ګے)-[صف-مذ]-قولنګ واله-قولنګ لرونکے.

**پټ قولنګے** :- (پ+ټْـــ)-[پ تر-صف مذ-ج:ګي)-هغه (چربدار) ټوپك يا تماچه چې قولنګ ئې بهر نۀ وي دننه پټ وي د ډزېه وخت په خپله را ولاړ شي. د کوترې راښکلو سره په کار توس ور خلاص شي-(د دې په مقابله کښې ښکاره قولنګ (يا قولنګونو) واله ټوپك وي چې د ډز په وخت په ګوته راښکل غواړي).

**پټ قولنګے ټوپک** :- (ـــ ټو+پَ+ك)-[پ تر-اس-مذ]-هغه ټوپك چې قولنګ ئې بهر نۀ وي جوړ شوے-بلکې دننه پټ جوړ شوے وي-او د ډز په وخت په ګوته را ودرول نۀ غواړي.

**قوله** :- (قو+لَ-[اس-مو-ج:لې]- کلاه-ټوپۍ.

هسې باد پرې د فنا له لوريه والوت

د لاله قــوله ئې پرې ايسته لــه ناره (رحمان بابا)

**قــوم** :- (قَـو+م)-[ع-اس-مـذ-ج:ونه/اقـوام]-(۱) د خلکو ټولے-اولس-چې يو ځاے اوسي او د يو نسل څخه وي. (۲) قبيله-د يوے قبيلې خلک-خېل-زی. (۳) طائفه-ټولے-فرقه. (۴) خانواده-کورنی-خاندان-ټبر.

**قومان** :- (قو+ما+ن)+(انګ/فر-اس-مذ]-د انګريزي د "کمانډ" (يا د فرانسيـ دغه شان لفظ) بدل شکل دے-کومان-حکم-اختيار.

**قوماندان** :- (قو+ما+ن+دا+ن)-[انګ فر-اس-مذ-ج:ان]-د فوځ يوه لويه عهده-کمانډر يا کمانډنټ د فوځ يو لوے افسر.

**قوم پرست** :- (قَـو+م+پَـ+رَ+سْ+ت)-[ف تر-صف مذ-مو:ه]-د قوم پرستش کوونکے-مجازاً د قوم سره بې کچه زياته مينه لرونکے-د قوم پره او طرفداري کوونکے.

**قوم پرستي** :- (قَو+م+پَ+رَ+سْ+تي)-[عف تر-اس-مو]-د قوم پرستش کونه-مجازاً په خپل قوم ډېر زيات مئين بودنه-د خپل قوم په هره معامله کښې پره او طرفداري کونه.

**قوم پـرور** :- (قَـو+م+پَ+رْ+وَ+ر)-[عـف تر-صف مذ-ج:ه]-د قوم پالنه روزنه کوونکے-د قوم خېر ښېګړې په کارونو کښې برخه اخيستونکے.

**قومندان** :- (قُو+مْ+نْ+دا+ن)-(وـــــ قومان دان).

**قومـه** :- (قَـو+مَ-[ع-اس-مـو-ج:مې)-پـه نمانځـه کښـې د رکـوع نـه وروسـتو ودرېدۀ.

**قومي** :- (قَو+مي)-[عف تر-صف]-قوم سره تعلق لرونکے-قوم ته منسوب-اولسي.

**قومي اسمبلي** :- (ـــ ا+سَ+مْ+لي)-[ف-انګ تر-اس-مو)-د ټول قام نه غوره کړې شوو غړو (ممبرانو) لوے جماعت (جرګه) چې تعلق ئې ټول ملك او قام سره وي-نېشنل اسمبلي.

**قـومي خـدمت** :- (ـــ خِ+دْ+مَ+تْ)-[افـپ تـر-اس-مـذ-ج:ونـه]د خپـل قـوم د خدمت څۀ کار.

**قومي ژبه (جبه)** :- (ـــ ج/ژ+بَ)-[افپ تر-اس-مو)-هغه ژبه چې د ټا قوم ئې وائي-

**قـومي مجلس** :- (ـــ مَ+جْ+لِ+سْ)-[ف تر-اس-مذ-ج:ونه]-قـومي جرګـه-هغـه ټولنـه پـه کـوم کښـې چې د يـو قـوم مشـران يـا غـوره کـړي غـړي د قـومي کارونو د پاره راجمع کېږي-اولسي جرګه.

**قــوم ورځ** :- (ـــ و+رَ+د) زْ-[افپ تر-اس-مو-ج:ځې]-د يو ملك يا د قوم د ازاد ېدلو يا جمهوريه کېدلو يا بله کومه داسې اهمه ورځ چې دغه ملك او قوم ئې کال په کال لمانځي.

**قوميت** :- (قَو+مي+يَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-[ع-اس-مذ-ج:ونه]- قـام والے-اولس والے-مليت قومي تعلق. د خپل قوم طرفداري او مرسته.

**قونسل** :- (قُو+ن+سُ+لْ)-[فر-اس-مذ-ج:ان]-په يو ملك کښې د بل کوم ملك نمائنده د سفير نه لاندې مرتبه لري. نائب سفير-قونسل-قونسول.

**قونسل خانه** :- (ـــ خا+نَ-[انګ ف تر-اس-مو-ج:نې]-هغه ځاے چې په کښې د کوم حکومت مقرر شوے قونسل دفتر وي-قونسول خانه.

**قونســلګري** :- (قـو+نْ+س+ُلْ+ګ+رِي)-[انـګ پ تـر-اس-مـو]-د قونســل د عهـدے سـره متعلـق کـار کونـه-د قونسـل ذمـه داري، سـر تـه رسـونه-د قونسل د کار دائره يا احاطه.

**قونسلي** :- (قو+ن+سُ+لِي)-[انګ ف تر-صف]-قونسل سره متعلق-قونسـل تـه منسوب-قونسولي.

**قونصل** :- (قَو+ن+ص+لْ)-[فر-اس-مذ-ج:ان]-(وـــــ قونسل)

**قونصــل جنــرل** :- (جَ+نْ+رَ+لْ)-[انـګ-اس-مـذ-ج:ان]لـوے قونصـل-د قونصلانو مشر.

**قوه** :- (قُو+وَ-(و-قوت]-د "قوه" ټولې محاورې او مرکبات د "قوت" تر لاندې وګورئ.

**قوي** :- (قَ+وي)-[ع-صف]-(۱) قـوت والـه-قـوت نـاك-طـاقتور-زور والـه. (۲) مضبوط-کلك-ټينګ-محکم. (۳) ښځ-درست-صحيح-لکه: هغه به قوي لس بجې دلته را رسېدۀ. (۵) د الله پاك يو صفاتي نوم. (۶) د نارينه ؤ په نومونو کښې راځي.

**قــوي الاثــر** :- (ـــ يُ+لْ+اَ+ثَ+رْ)-[ع تـر-صـف]-ډېـر زر يـا قـوت سـره اثـر کوونکے.

**قوي الاقتدار** :- (ـــ يُ+لْ+ا+قْ+ت+دا+ر)-[ع تر-صف]-ډېر اقتدار لرونکے-ډېر زور لرونکے-ډېر طَاقت واَله.

**قوي البنيه** :- (ـــ يُ+لْ ب+نِي/نْ+يَ)-[ع تر-صف]-په بدن کلك او قوتناك. (د ضعيف البنيه په مقابله کښې).

**قــوي القلــب** :- (ـــ يُ+لْ-قَ+لْ+ب)-[ع تـر-صـف]-مضـبوط زړۀ والـه-کلـك زړے.

**قــوي جثــه** :- (ـــ جُ+ثْ+ثَ)-[عـف تـر-صـف]-مضـبوطې جـوثې والـه-کلـك غښتلے-بدن واله.

**قــوي هيکـل** :- (ـــ هي+ك+لْ)-[عـف تـر-صـف]ډېرې لـوې جـوثې والـه-ډېـر لوے لوړ ډنګ.

**قوي** :- (قَ+وا)-(وـــــــ قوا).

**قهار** :- (قَ+هْ+ها+ر)-[ع-صف-مذ-مو ـــه]-(۱) قهرجن-ډېرې غصې واله-ډېر قهر کوونکے-(۲) غالب-زوره ور. (د دې لفظ اصل معنې هم دغه دي)

منکران مې له کرمه بې بهرې دي

پـــېژندلے ئې پـــه اسم قهار نۀ وم (حافظ)

(۳) د الله تعالی پاك يو صفاتي نوم دے-خو دا صفت برنی. دويمه

معنې لري)

هم دروغ کړې هم ګناه کړې
ترس دې نهٔ شي لـــه قهاره (خوشحال)

(۴) د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي. (۵) (د فوځ پـه صفت کښـې) غالب کېدونکے برے موندونکے-زور راوړونکے-زوره ور.

**قهر** :- (قَ+هَـ+رْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) غصه-غضب-کاوړ-برچ. (۲) زوره ورتیا-غلبه. (۳) غضب ناك-ظالم-زیاتے کوونکے. (۴) بلا-افت-مصیبت-شامت.

**قهر الهي** :- (ـــا+لا+هي)-(وـــــــ د خدا ے قهر).

**قهر جن** :- (ـــج+نْ)-[عـپ تر-صف-مذ-مو:ه]-غصه ناك-غضب ناك-زر غصه کېدونکے-زر په قهر کېدونکے-زر قهرېدونکے.

**قهر غصه** :- (ـــغُ+صَ)-[عف تر-اس-مو-ج:صې]-د دواړو لفظونو معنې یو شان دي-دویم لفظ ورسره د تاکید د پاره راوستے شي.

د لاړا کو جونه پټې سپاهیان پرېباسي
چې پـــه قهر غـصه راشي، قهر جنې (خوشحال)

**دخـدا ے پـه قهـر اختـه کېـدل** :- (۱) غـلط کـار کـول-وران کارونـه کـول. (۲) پـه مصیبت کښې راګېرېدل-تکلف یا افت راتلل.

**دخداے په قهر اوړېدل** :- (وـــــ د خدا ے په قهر اخته کېدل).

**دخداے قهر** :- (دَ+خ+دا+ئے ـــ)-[عـپ تر-اس-مذ]-د خداے پاك غضب-د خداے عذاب اسماني افت.

**دقهر څخه سره لمبه کېدل** :- د قهر د تاوه (د چا) مخ تك سور کېدل-مجازاً بې کچه ډېر غصه کېدل.

**قهرمـان** :- (قَ+هـ+رْ+ما+ن)-[ع-اس-مـذ-ج:ان]-(۱) حکـم کـوونکے-زورور حاکم. (۲) هېرو-اتل-چېمپین. لکه: دې خاورې ډېر ادبي قهرمان روزلي دي.

**قهرماني** :- (قَ+هـ+رَ+ا+نِي)-[عـف تر-اس-مو]-(۱) حکم چلونه-حاکمي. (۲) غلبه. (۳) هېروتوب-اتل توب.

**قهرنـدوکے** :- (قَ+هـ+رَ+نْ+دُو+کَے)-[عـپ تر-فـا-مـذ-ج:کي]-قهرېـدونکے-قهرناك-غصه ناك-زر غصه کېدونکے-چې په طبیعت کښې ئې غصه زیاته وي.

**قهرول** :- (قَ+هْ+رَ+ؤ+لْ)-[مص]-(۱) په قهر کول-غصه کول-پـه غضب کښـې راوستل. (۲) چېړل-تنګول.

**قهرولے** :- (قَ+هْ+رَ+ؤ+لے)-[عپ-اس-مذ-ج:لي]-په قهر کړے-په غصه کښې راوستلے شوے-په غصه کړے.

خداے د خیال د زلفو خبرکه وحمید ته
چې پخوا کښې قهرولے منګـــور هسې (حمید)

**قهرونه** :- (قَ+هْ+رَ+ؤ+نَ)-[حمص]-په قهر کونه-غصه کونه-سختونه.

**قهره** :- (قَ+هْ+رْ)-د "قهر" بدل شکل چې ځینې مغېره تورو سره راځي.

**له قهره** :- د قهر له کبله-د غصې په وجه.

**له قهره تک سور کېدل** :-

**له قهره سره لمبه کېدل** :- دومره زیات په غصه کېدل چې د غصې له تاوه ئې مخ تك سور راووځي. مجازاً: بې کچه ډېر غصه کېدل.

**قهرېدل** :- (قَ+هْ+رِي+د+لْ)-[مص]-(۱) په قهر کېدل-غصه کېدل. (۲) تسغې سپورې وئیل- زورل.

**قهرېدلے** :- (قَ+هْ+رِي+د+لَے)-[عپ تر-اس مف مذ-ج:لي]-په قهر شوے-په غصه کښې راغلے.

**قهرېدنه** :- (قَ+هْ+رِي+د+نَ)-[حمص]-په قهر کېدنه-غصه کېدنه-سختېدنه.

**قهرېـدونکے** :- (قَ+هـْ+رِي+دُو+ن+کَے)-[عـپ تـر-اس فـا-مـذ-ج-کـي]-پـه قهـر کېدونکے-غصه کېدونکے-سختېدونکے.

**قهقره** :- (قَ+هْ+قَ+رَ)-(وـــــــ قهقرىٰ).

**قهقرىٰ** :- (قَ+هْ+قَ+را)

**قهقرا** :- [ع-اس-مذ]-په وروستو تلنه-په شا رجعت-کنه پچې.

**قهقرا کول** :- (۱) په شاتلل-په وروستو تـګ کـول-کنه پچې کول. (۲) مجازاً د خپل حالت نه تنزل کول.

**قهقرائـي** :- (قَ+هـ+قَ+را+ئي)-[عـف تـر-صـف]-قهقرىٰ سره تعلق لـرونکے-قهقرىٰ ته منسوب.

**قهقه** :- (قَ+هْ+قَ+هْ)-[اس-صوت]-د خندا اواز-په پرق پرق د خندا اواز.

**قهقهه** :- (قَ+هْ+قَ+هَ)-[ع-اس-مو-ج:هې]-په زوره د خندا اواز-خټ خټ-کټ کټ-کټکے-کټهار.

**قهقهه کول** :- په زوره- په خټ خټ یا په کټ کټ خاندل.

**قهقهه وهل** :- په زوره کټکے کول-په خټ خټ یوه خندا کول.

**قهـوه** :- (قُ+هْـ+وَ)-[ع-اس-مو-ج:وې]-هغـه چـائې چې د چـایو د شنوپاڼو نـه جوړولے شي. دا شنه چائې په یشېدلو اوبو کښې واچوې-خوارۀ او لاچې ورسره ګډ کړے شي-په دې کښې پې نه اچولے کېږي.

**قهوه چائې** :- (ـــچا+ئې)-[ع پ تر-اس-جم]-شنې چائې-د چا یو هغه پاڼې چې د قهوې د جوړولو د پاره پکارېږي- د دې رنګ شین وي-ځکه ورته شنې چائې هم وائي.

**قهوه خانه** :- (ـــخا+نَ)-[اس-مو-ج:نې]-هغـه ځـاے یـا دوکـان چرتـه چې قهوه خرڅېږي-د قهوې د څښلو ځاے یا دوکان. (اصلاً د دې رواج اول پـه عربو کښې ؤ-اوس هم د قهوې یا د کـافي په خاصو دوکـانونو کښې خلک راجمع شي-قهوه یا کافي هم څښکي او په خپلو کښې ګپ شپ هم لګوي.

**قهـوې** :- (قَ+هْـ+وې)-(۱) د قهوه جمع ده. (۲) د "قهـوه" اضـافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل دے.

**قے** :- (قے)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-التې-جارباسنه-کانګه-خوړ کوز کاتۀ.

**قے کول** :- التې کول-جارباسل (خوړلے څیز)-کانګے کول-خوړ وهل-کوز کتل.

**خونې قے** :- (خُو+نې ـــ)-هغه قے یا التې چې په کښې مریض وینې جارباسي-وینې جارباسند.

**قیـادت** :- (قِ+یـا+دَ+تْ)-[ع-اس-مـذ-ج:ونـه]-لاربښـودنه-دلاربښـودنې د پـاره وړاندې تلنه-رهنمائي-پېشوائي-لیډري-بومیا ګلوي.

**قیادت کول** :- لاربښودنه کول- مشري کول-رهنمائي کول-پېشوائي کول.

**په قیادت کښې** :- په مشرۍ کښې-په رهنمایۍ کښې.

**دقیادت تر لاندې** :- (وـــــــ په قیادت کښې)

**قیاس** :- (ق/قِ+یا+س)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) د کوم معلوم څیز په رڼا کښې د بل کوم نا معلومه څیز په حقله اندازه یا رائې. (۲) اندازه-خیال-اټکل-تخمینه.

**قیاس جنګول** :- خیالي اندازه لګول-د قیاس نه کار اغېستل.

**قیاس کول** :- (۱) د یو معلوم څیز په مدد سره د بل کوم نا معلومـه څیـز پـه حقلـه اندازه لګول. (۲) اندازه لګول-اټکل کول- خیـال کـول. لکـه: نـورې خبرې هم دغه رنګې قیاس کړه.

**په دې قیاس سره** :- په دې اندازه-د دغې معلوم څیز د بل څیز په حقله رائې مطابق.

**په قیاس کښې راتلل** :- په خیال کښې راتلل-په اندازه کښې راتلل-په سوچ او فکر کښې راتلل.

**تر قیاس تېر** :- چې قیاس یا اندازه ئې نۀ شي لګېدے-بې حده ډېر-بې اندازې.

که تۀ په دا خوښېږې چې خاوند د ملك و مال وم
مال و ملك مې هومره کړې چې تېر دي تر قیاس (خوشحال)

**د قیاس نه بهر/په هورته** :- له قیاسه بهر.

**علي قیاس** :- (عَ+لَ+لْـــ)-[ع تر-تف]-د عامې قاعدې یا د ښېښې مطابق-د قیاس مطابق-د خیال، ګمان، اندازې مطابق.

**قیاساً** :- (ق/ق+یا+س+نْ)-[ع-تف]-د قیاس په توګه-په قیاس-اندازةً (انداتاً)-تخمیناً.

**قیاسول** :- (ق+یا+س+وُ+لْ)-[مص]-قیاسي کول-قیاسي اندازه لګول.

**قیاسه** :- (قَ+یا+سَ)-د "قیاس" بدل شکل چې ځینو مغیره تورو سره راځي.

**له قیاس بهر** :-

**له قیاس وتلے** :- هغه کار یا خبره چې اندازه ئې نۀ شي لګېدے. د اندازې د حد نه په هورته یا پرې څۀ رائې ۀ نشي قائمېدلے. لکه: دا خبره لـه قیاس وتلې ده.

**قیاسي** :- (قَ+یا+ـسي)-[عف تر-صف]-(۱) د قیاس سره تعلق لرونکے-قیاس ته منسوب. (۲) خیالي-د اندازې په توګه-ګماني فرضي-مرهومي. (۳) (ګرېمر) (کوم لفظ وغېره) د قاعدې مطابق جوړ شوے-د قاعدې مطابق (په مقابله کښې د "سماعي").

**غېر قیاسي** :- (غَ+ز—)-[عف تر-صف]-د قاعدې نه خلاف-بې قاعدې.

**قیاصره** :- (قَ+یا+س+رَ)-[ع-اس-ج]-د "قېصر" جمع ده. (و____ قېصر).

**قیافه** :- (ق/ق+یا+فَ)-[ع-اس-مو-ج:فې]-(۱) خط و خال-کرۀ ورۀ-سنته-جوګه. (۲) دیو علم نوم دے چې د بني ادم د ښېښو لاسونو. مخ وغېره خط و خال نه د ښه او بد شګون اخلي-او د دې په مدد د دغې سړي افعال او احوال معلوموي.

**قیافه شناس** :- (ــش+نا+س)-د قیافې پېژندونکے-د بني ادم د مخ د کرۀ ورۀ نه د هغۀ د زړۀ حال یا د هغه د قسمت حال معلومونکے.

**قیافه شناسي** :- (ــش+نا+سي)-[عف تر-اس-مو]-د مخ د کرۀ ورۀ نه د چا د زړۀ حال یا د چا د قسمت حال معلومول.

**په پرېشانه شناسي** :- (پَ+پ+رې+شا+نَ—)-د مخ د کرۀ ورۀ نه پرېشاني څرګندېدنه.

**علم قیافه** :- (ع+لْ+مِ—)-[عف تر-اس-مذ]-د قیافې علم-هغه علم چې د بني ادم د ښېښو لاسونو او مخ د کرۀ ورۀ نه د هغه احوال او افعال معلوموي. یا ترې ښۀ او بد شګون اخلي.

**قیافې** :- (ق/ق+یا+فې)-(۱) د قیافه جمع. (۲) د "قیافه" اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل.

**د قیافې نه څرګندېدل** :- د مخ د کرۀ ورۀ او خط و خال نه د دغې سړي د زړۀ حال یا د هغۀ احوال معلومېدل.

**د قیافې نه معلومول** :- د مخ د خط وخال نه معلومول-د مخ د کرۀ ورۀ نه (د زړۀ حال معلومول.

**د قیافې نه معلومېدل** :- (و_______ د قیافې نه څرګندېدل).

**قیام** :- (ق/ق+یا+م)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) ولاړه- ودرېدنه. (۲) پاتې کېدنه-ایسارېدنه-په کوم ځاے کښې څۀ وخت (ورځې شپې) تېرونه. (۳) په نمانځۀ کښې هغه حالت چې نمونځ ګذار په ولاړه لوستنه کوي. (۴) پائداري-استحکام مضبوطوالے-کلکوالے. (۵) د ځینو نارینه ؤ په نوم کښې هم راځي.

**قیام پذیر** :- (ــپَ+ذِ+ر)-[عف تر-صف مذ-مو:ه]-(۱) قیام کوونکے-استوګنه نېوونکے-پاتې کېدونکے-مقیم. (۲) پائدار-تر ډېر وخته پورې پاتې کېدونکے.

**قیام کول** :- (۱) د سفر په دوران کښې په کوم ځاے کښې ایسارېدل. (عارضي استوګنه لرل-په کوم ځاے کښې څۀ وخت (ورځې شپې وغېره) تېرول-سکونت اختیارول.. (۲) ودرېدل-ولاړېدل.

**قیام لرل** :- په یو ځاے کښې پاتې کېدل-(عارضي)-استوګنه لرل-ایسارېدل-سکونت اختیارول.

**قیام نۀ لرل** :- (۱) په یو ځاے کښې ټینګ نۀ پاتې کېدل بغېر د ودرېدلو یا ایسارېدلو روان اوسېدل. (۲) استحکام نۀ لرل-کلکوالے نۀ لرل.

**په قیام اودرېدل** :- په نمانځۀ کښې په ولاړه لوستنه کول-په نمانځه کښې ولاړېدل.

په قیـام درتـــه ولاړ واړه اشجـــار دي
په رکوع دي حیوانات غواړي یاري ستا (عظیم)

**د قیام ورځ** :- (و_____ د قیامت ورځ.

**قیامت** :- (ق+یا+مَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) لفظي معنٰی ئې ودرېدنه یا ولاړه ده. اصطلاحاً اخرت ته وائي-محشر-پاڅون چې ټول خلک به له قبرونو را ولاړ شي. (۲) مجازاً سخت وخت-ډېر لوے مصیبت بلا-افت-غضب. (۳) ډېر زیات شور زوږ-هله ګوله-افراتفري.

**قیامت برپا کول** :- (و______ یو قیامت راوستل).

**قیامت برپا کېدل** :- (۱) د قیامت ورځ راتلل-د محشر قائمېدل. (۲) شور زوږ پورته کېدل-چغې سورې پورته کېدل.

**قیامت بودل** :- افت بودل-مصیبت بودل- د تکلیف یا د ناخوښۍ باعث بودل.

ښۀ یاران چې سره ناست وي، محبت کا
چې اغیار وربان دې راشي، قیامت وي (خوشحال)

**قیامت خېز** :- (ــخَې+ز)-[عف تر-صف مذ-مو:ه]-قیامت را پورته کوونکے-سخت تکلیف یا مصیبت پېدا کوونکے. لکه: قیامت خېزه ګرمي.

**قیامت راکوزول** :- ډېر زیات مصیبت راوستل-ډېر زیات ظلم زور راغېشتل-ډېره زیاته سختي او تنګي راوستل-لکه: ګرمۍ خو (یو) قیامت را کوز کړے ؤ.

**قیامت راتلل** :- (۱) د قیامت ورځ راتلل-د محشر ورځ راتلل. (۲) افت راتلل-لوے مصیبت نازلېدل.

**قېد** :- (قَے+د)[ع-اس-مذ-ج:ونه/قیود]-(۱) حبس-بندونه-بند. (۲) بندېز-پابندي-اړتون. (۳) شرط.

**قېد بامشقت** :- (ــبا+مُ+شَ+قْ+قَ+تْ)-[عف تر-اس-مذ]-(قانون) د قېد هغه سزا چې په کښې یو قېدي خاص قسم مشقت (سخت کار) هم کوي.

**قېد تنهائي** :- (ــتَ+نْ+ها+ئي)-(۱) د یوازتیا پابندي-هغه قېد چې قېدي په کښې هېچا سره نۀ شي لیدلے. (۲) د یوازې پاتې کېدو پابندي.

**قېد تېرول** :- (۱) د قېد میعاد پوره کول. (۲) د قېد ورځې په جېل کښې تېرول.

**قېد خانه** :- (ــخا+نَ)-[عف تر-اس-مو-ج:نې]-(۱) هغه ځاے چې قېدیان په کښې ساتلے شي. جېلخانه-بندي خانه-جېل. (۲) مجازاً هغه ځاے چرته

چې ځوک پابند کړے شوے وي. (۳) مجازاً تنګ ځاے.

**قېد شدید** :- (ــــ شَ+دی+د)-[عف تر-اس-مذ]-هغه قېد چې قېدي په هتکړو او بېړو کښې ساتلے شي.

**قېد کول** :- قېدول-بندي کول.

**قېد لګول** :- پابندي لګول-بندېز لګول-شرط لګول.

**قېد محض** :- (ــــ مَ+ح+ضْ)-[عف تر-اس-مذ]-(قېد بلا مشقت)

**قېدول** :- (قَے+دَ+ؤ+لْ)-[مص]-(۱) په قېد کښې اچول-پابندي کول-حبس کښې اچول. (۲) په یو ځاے کښې بندول. (۳) پابندي کول-پابندي لګول.

**قېدونه** :- (قے+دَ+ؤ+نَ)-[حمص]-بندي کونه-حبسونه-بند کښې اچونه.

**قېدوونکے** :- (قَے+دَ+وُو+ن+کَے)-[عپ تر-اس فا-مذ-ج:کي]-په قېد کښې اچوونکے-بندي کوونکے بندي خانه کښې اچوونکے.

**قېده** :- (قَے+دَ)-د "قېد" بدل شکل دے-ځینو متغیره تورو سره راځي.

**قېدي** :- (قَے+دي)[عف تر-اس-ج:ان](۱) هغه چې قېد شوے وي-قېد کېدونکے بندي- بندي خانه کښې اچولے شوے. (۲) ګرفتار شوے-نېولے شوے. (۳) مجازاً: هغه ځوک چې د څۀ وخت د پاره په یو ځاے کښې پابند کړے شوے وي.

**قېدېدل** :- (قَے+دي+د+لْ)-[مص]-(۱) قېد کېدل-جېلخانې ته استولے کېدل بندي کېدل-بندي خانې ته استولے کېدل په حبس کښې اچولے کېدل. (۲) بندېدل-په کوم کار وغېره کښې ګېرېدل. پابند کېدل-پابندي لګېدل.

**قېدېدنه** :- (قَے+دي+د+نَ)-[حمص]-(۱) قېدي کېدنه-بندي کېدنه-جېل ته استولے کېدنه. (۲) بندېدنه-ګېرېدنه-پابند کېدنه.

**قېدېدونکے** :- (قَے+دي+دُو+ن+کَے)-[اس-فا-مذ-ج:کي]-په قېد کښې راتلونکے-بندي کېدونکے په بندي خانه کښې اچولے کېدونکے-قېدي کېدونکے.

**قیر** :- (قی+ر)-[ع-اس-مذ]-یو قسم سلېښ دي-چې تور رنګ لري دا په کشتو بېړو او په جهازونو وغېره لګولے شي-او سړکونه پرې پخولے شي-زرنه-رانځوۀ-نتزره-تارکول.

**قیراط** :- (قی/قے+را+ط)-[انګ-اس-ج:ونه]-(۱) د یو وزن نوم دے-چې عموماً د سرو سپینو وغېره قیمتي څیزونو په تللو کښې پکارولے شي-پخوا د درهم دولسمه برخه وه (انګ-کېرټ)-دا په څلېرشتو برخو کښې ویشلے شي لکه یو شے چې د څلېرشتو قیراط سرۀ زر لري. هغه خالص د سرو زرو وي-او که ۲۲ قیراط سرۀ زرو نه جوړ وي- نو ۲۲ برخې سرۀ زر وي. او دوه برخې په کښې بل کوم فلزګډ وي.

لهٔ کم اصله بې دیانته بې نمازه
طمع مه کړه د نېکۍ یو قیراط (رحمان بابا)

**قیرپاش** :- (قی+ر+پا+ش)-[عف تر-اس-مذ-ج:ونه]-(۱) هغه مزدور ځوک چې په سړک وغېره باندې تارکول چڼکوَي. (۲) هغه مشین چې هم په کښې تارکول ګرمولے او ویلي کولے شي-او هم په سړک باندې پاشلے شي.

**قیر بدل** :- (ق+ربے+د+ل)-(وــــ قیر کېدل).

**قېزه** :- (قَے+زَ)-[اس-مو-ج:زې]-د اس وغېره په خولۀ کښې د اچولو د وسپنې هغه اله چې ورسره واګې تړلے شي-او اس پرې په قابو کښې ساتلے شي.

**قېزه اچول** :- په قابو کښې کول.

**قېس** :- (قَے+س)-[ع-اس-مع]-(۱) د عربو د قبیلې نوم. (۲) د عربو د مشهورې روماني قیصې هیرو چې په لیلی مئین ؤ-او عشق ئې انتها ته رسېدلے ؤ-ځینې د لېونتوب په وجه ورته مجنون هم وائي.(ځینې نوي محققین وائي-چې دا هسې فرضي قصه ده-او په عربو کښې د قېس په نامه هېڅ ځوک سړے نۀ ؤ-ځینو ورله شجره نسب او خېل (بنو عامر) هم په ګوته کړے دے-او وائي چې په سن ۷۰هـ کښې وفات شوے دے). (۳) د پښتون قام دغورینکۀ-(جد امجد) نوم-قېس عبدالرشید. (خو د نوي تحقیقاتو له رویه د دغې قېس عبدالرشید شخصیت هم مشکوک ګرځېدلے دے).

**قېسرغو** :- (قَے+سَ+رُغَ+رْ)-[اس-مع]-تختِ سلیمان.

**قیشلاق** :- (ق+ش+لا+ق)-(وــــ قشلاق).

**قېصر** :- (قَے+صَ+رْ)-[اس-مع-ج:ان/قیاصره)-(۱) د مغربي روم د بادشاهانو لقب-وروستو د مشرقي روم چې دارالحکومت ئې قسطنطینه ؤ-د بادشاهانو هم دغه لقب ؤ. (۲) د نارینهٔ ؤ په نومونو کښې راځي. (اصلاً دا د روم د حکومت یو جرنېل ؤ. چې فرانس او برطانیه ئې فتح کړي وو. دښمنانو مړکړو-نو د دۀ وراره د روم باچا شۀ-هغه د خپل ترۀ دا نوم خپل لقب وګرځاوۀ-دا نوم وروستو دومره مشهور شۀ چې قسطنطنیه، جرمني، اسټریا، بلغاریه او د انګلستان بادشاهانو هم دغه نوم (قېصر) خپل لقب وګرځاوۀ. ځینې وائي-چې قېصر هغې ماشوم ته وائي کوم چې لاد مور په ګېډه کښې وي او مورئې مړه شي. او دا ماشوم د اپرېشن په ذریعه د مور د ګېډې نه را وویستے شي. د روم اولنے بادشاه هم دغه رنګ پیدا شوے ؤ-چې بیا وروستو د ټولو رومي (رومن بادشاهانو لقب وګرځېد)

**قېصه** :- (قی+صَ)-(وــــ قصه)

**قېصي** :- (قی+صي)-(وــــ قصي).

**قېطون** :- (قَے+طو+ن)-[ع-اس-مذ]-(۱) د زري تار او د رېښمونه جوړ شوے یو قسم مزے یا فیته چې د زنا---- قمیصونو په لمنو او په ګرېوانونو او په ټوپو لګولے شي.

**قېطس** :- (قی+طُ+سْ)

**قېطوس** :- [اس-مع]-د سهېلي منطقې په پنځلسو بروجونو کښې د اولنې برج صورت.

**قیف** :- (قی+ف)-[اس-مذ-ج:ونه]-مشهوره اله چې د تنګې خولې واله لوښي (لکه بوتل) کښې پرې مائع څیز اچولے شي-پیک-غیپ.

**قیفال** :- (قی+فا+ل)-[ع-اس-مذ-ج:ونه]-د یو رګ نوم دے چې د بدن نه د (خرابو) وینو وښکلو د پاره په نشتر وهلے شي.

**قیفال وهل** :- د قیفال رګ په نشتر وهل او وینې وښکل.

دعـــا شق لــــه رګه وبهوئ وینې
چې جراح د معشوقې وهي قیفال (خوشحال)

**قیل وقال** :- (قِ+لو+قا+ل)-[ع-تر-اس-مذ]-(۱) خبرې-بحث-تو د بحث-حجت بازي.

د خداے حکم جاري نۀ وي بې حکمته
هېڅ د دې خبرې نشته قیــل و قـــال (خوشحال)

(۲) شور شغرب-هنګامه-شور زوږ.

**قېلوله** :- (قَے+لُو+لَ)-[ع-اس-مو-ج:لې]-د غرمې د وخت لږ شان خوب-د ډوډۍ د خوراك نه پس لږ شان ارام.

**قېلوله کول** :- (۱) د غرمې په وخت لږ شان خوب کول. (۲) د غرمې د ډوډۍ د

خوړلونه پس لږ شان خوب یا ارام کول.

**قیم** :- (قَ/یْ+یَ+مْ)-[ع-اس-صف]-(۱) ساتونکے-ساتندوے-محافظ. (۲) سرپرست (د وړوکي یا دلېوني).

**قیم** :- (قِی/قِ+یَ+مْ)-[ع-اس-ج)- د قیمت جمع ده.

**قیماغ** :- (قِی+ما+غ)-[اس-مذ]-پېروے-ملائي.

**قیماق** :- (قِی+ما+ق)-(و______ قیماغ)

**قیمت** :- (قِی+مَ+تْ)-[ع-اس-مذ-ج:ونه/قیم]-(۱) بېعه-بیه-بها-ارز (۲) نرخ. (۳) قدر-منزلت-مرتبه.

**قیمت بها** :- (___ بَ+ها)-ډېرې بیعې والـه- ډېر قیمت والـه-بېش قیمته-قیمتي-ګران.

توري وروځې ئې لیندې بانه ئې غشي
غاښ ئې در قیمت بها ، په لب شکره (خوشحال)

**قیمت تخمیني** :- (___تَ+خْ+مي+نِي)-[عف تر-اس-مذ]-په اندازه لګولے شوے قیمت-تخمین شوے قیمت.

**قیمت حقیقي** :- (___حَ+قِی+قِی)

**اصل قیمت** :- (اَ+صْ+ل___)- اصلي قیمت-صحیح قیمت.

**قیمت طلب** :- (___طَ+لَ+بْ)-ډېر قیمت واله.

**قیمت ناک** :- (___نا+ك)-(و______ قیمت دار).

**قیمت دار** :- (قِی+مَ+تْ+دا+ر)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه)-قیمت لرونکے-ډېر قیمت لرونکے-قیمتي د ډېرې بیعې (بیې).

**قیمت طلب** :- (قِ+مَ+تْ+طَ+لَ+بْ)-[عف تر-صف-مذ-مو:ه]-قیمت غوښتونکے-ډېر قیمت واله.

**قیمتول** :- (قِی+مَ+تَ+ؤ+لْ)-[مص]-قیمت کول-د قیمت تر لاندې.

**قیمته** :- (قِ+مَ+تَ)-(۱) د قیمت یو قسم جمع ده. (۲) په مرکباتو کښې راځي-او د قیمت واله وغېره معنٰی ورکوي.

**بېش قیمت** :- (بے+س)-[فپ تر-صف]-زیات قیمت واله-ګران-ډېر قیمت واله-قیمتي.

**کم قیمتي** :- (كَ+م___)-[فپ تر-صف]-کم قیمت واله-کمې بیعې واله-ارزان. لکه: کم قیمته بې علته نۀ وي.

**قیمتي** :- (قِی+مَ+تِي)-[عپ تر-صف]-(۱) ډېر قیمت واله-ډېرې بیعې (بیې) واله-ګران. (۲) د قیمت-د بیعې. (۳) قابل قدر-اعلی-نفیس- غوره.

**قیمومت** :- (قَے+مُو+مَ+تْ)

**قیمومیت** :- (قَے+مو+م+یَ+تْ)-[ع-اس-مذ]-سرپرستي-د حفاظت تر لاندې. لکه: فلسطین تر ډېرې مودې پورې د انګرېزانو د قیمومت تر لاندې ؤ.

**قیمه** :- (قِي+مَ)-[ف-اس-مو-ج:مې]-ټکېدلې او نرۍ نرۍ کړې غوښه ورژلې یا ورژلې غوښه.

**قېنج** :- (قَے+ن+ج)-[اس-مذ-ج:ونه]-نازنخره-کېځ مکېځ-عشوه کرشمه.

**قېنج کول** :- ناز نخرې کول-ادا کول-کېځ مکېځ کول.

**قېنجي** :- (قَې+ں+جي)-[صف]-قېنج کوونکے-نازنخرې کوونکے-کېځ مکېځ کوونکے.

**قینچـي** :- (قَـے+ں+چـي)-[اس-مـو-ج: انـې/ۍ]-د ټـوکي وغېـره د پرېکولـو مشهوره اله-مقراض-قېچي-بیاتي.

**قینچي ژبه/جبه** :- (___ژ/ج+بَ)-[فپ تر-اس-مو-ج:بې)-هغـه ژبـه چې د قېنچۍ په شان تېزه چلېږي-تېزه ژبه/جبه.

**قینچي کول** :- په قېنچۍ پرېکول-سکښتل.

**سپي قینچي کول** :- بې نفعې یا بې فائدې کارکول-خوشے ځان کړول.

**د قینچـي پـه شـان ژبـه/جبه چلـول** :- تېـزې تېـزې خبـرې کـول-سـخت سـخت اعتراضونه کول-غر غر خبرې کول.

**قیود** :- (قُ+یُو+د)-د "قید" (عربي) جمع ده.

**قیـوم** :- (قَ+یْ+یُـو+م)-[ع-صـف]-(۱) سـاتونکے- سـاتندویه-ژغـوروونکے-جغـوروونکے. (۲) د خداے پاك صفاتي نـوم. (پـه دې صورت کښـې ئـې معنٰی تل ژوندے پاتې کېدونکے هم ده). (۳) د نارینـهٔ پـه نومونـو کښـې راځي.

◈◈◈

# ک

**ک** : – (کا+ف) اسم ـ ج ـ کاف د پښتو دوه دېرشم توری دی ـ د عربۍ دوه ویشتم ، د فارسۍ پینځویشتم ، د اردو اته ویشتم توری دی ـ د هندۍ او سنسکرت اولنی توری دی ـ د قاف فرق دپاره په پښتو کښې ورته ورو کی کاف او کش دار کاف هم وائي ـ د ,, کلمن ،، (ابجدو یوه کلمه) کاف هم بللی شي ـ د ,,گ ،، نه د تمیز دپاره ورته د عربۍ تازي کاف هم وائي په پښتو کښې ق په ک بدلیږي او ځینې قبیلې د ک په ځای ق هم وائي ـ د ابجدو په حساب کښې دا ئي شلم (۲۰) توری دی ـ په عربۍ کښې د جار توری دی ـ او د مثال په رنگ ، په شان وغیره معنې ورکوي ـ لکه ,,کالعدم ،، کالانعام وغیره ـ

**کا** :- (ک+ا) کوي ـ کړي وکړه ـ (د کړل مضارع) (اس ـ واحد ـ مو ـ خارښ خارښت ـ کَهَ

**کابر** :- (ک+ا+ب+ر) (اس ـ واحد ـ مذ) د اسپنې اله چې د اوبۍ کتـه پرې لـه وښـو او لوخې نه ډکولی شي ـ

**کابک** :- (ک+ا+ب+ک) (اس ـ واحد ـ مذ) د کونترو د اوسېدو ځای ـ هغه واړهٔ واړهٔ تاخونه چې کونترې په کښې ساتلی شي ـ جمع کابکونه ـ

**کابوس** :- (ک+ا+ب+و+س) (اس ـ واحد ـ مو) خپسه ـ خپسکه ـ د یوې بیمارۍ نوم چې په خوب کښې راځي ـ

**کابین** :- (ک+ا+ب+ي+ن) (اس ـ واحد ـ مذ) ولور ـ مَهر ـ د مهر روپۍ

**کابین نامه** : – (ک+ا+ب+ي+ن+ن+ا+م+ه) (اس ـ واحد ،مؤ ـ) نکاح نامـه مهرنامـه ـ دوادهٔ د رجسټرۍ کاغذ ـ

**کابینـه** : – (ک+ا+ب+ي+ن+ه) (اس ـ واحد ـ مؤ) د وزیرانو ټولگی ـ د وزیرانو مجلس ـ جمع کابینې ـ

**کاپر** : – (ک+ا+پ+ر) (اس ـ واحد ـ مذ) پتهوونکی ـ د حق نه انکار کوونکی ـ د کافر عامیانه توری ـ

**کاپرچټ** : – (ک+ا+پ+ر+چ+ټ) (اس ـ واحد ـ مذ) د چړې او تبر په شان یوه تېره وسله ـ (اسلحه)

**کاپرخلې** : – (ک+ا+پ+ر+خ+ل+ې) (اس ـ واحد ـ مذ) پوځکۍ ـ خربړې پوځړې ـ ستورې ـ یو قسم مرخېړې ـ

**کاپرگل** : – (ک+ا+پ+ر+گ+ل) (اس ـ واحد ـ مذ) نمرپرست ـ زیړرنگ لرونکی گل ـ نمر گل ـ

**کاپور** : – (ک+پ+و+ر) (اس ـ واحد ـ مذ) د کافور عامیانه قرات ـ

**کاپي** : – (ک+ا+پ+ي) (اس ـ واحد ـ مؤ) ۱ ـ مجله صفا کاغذ چې لیک پـه کښې کولی شي ـ ۲ ـ نقل ـ د یو لیکلي کاغذ نه په لاس یا په مشین اخستی نقل ـ

**کاپیړه** : – (ک+ا+پ+ي+ړ+ه) (اسم صفت ـ واحد ـ مذ) مضبوط ـ غټ

**کات** : – (ک+ا+ت) (اس ـ واحد ـ مذ) بیاتي ـ کاز ـ قینچي

**کاتب** : – (ک+ا+ت+ب) اسم صفت ـ واحد ـ مذ ـ خوشخط لیکونکی خوشنویس ـ کتابت کوونکی ـ جمع کاتبان ـ مؤنث کاتبه ـ

**کاتبي** : – (ک+ا+ت+ب+ي) (اسم ـ) ۱ ـ د کتابت کار ۲ ـ یو قسم واسکټ

**کاتره** : – (ک+ا+ت+ر+ه) اس ـ واحد ـ مؤ) کاترۍ ـ غټه خمبه ـ لوی کندو

**کاترۍ** : – (ک+ا+ت+ر+ۍ) (اس ـ واحد ـ مؤ) وګوری کاتره ـ

**کاتک** : – (ک+ا+ت+ک) (اس ـ واحد ـ مؤ) د هندي کال وومه میاشت ـ کتک

**کاتل** : – (ک+ا+ت+ل) مصدر په بیاتي پرېکول قینچي کول سکټل

**کاتلې** : – (ک+ا+ت+ل+ې) (اس ـ واحد ـ مذ) شمشتۍ ـ کشپ ـ جمع کاتلي

**کاتـه** : – (ک+ا+ت+ه) (اس ـ واحد ـ مؤ) ۱ ـ تجارتي معاملـه لېن دېن ـ حساب کتاب ۲ ـ د سوداگرو وغېره د حساب لیکلو کتاب ـ

**کاټ** : – (ک+ا+ټ) اسم صفت ـ کمی ـ لږوالی ـ

**کاټلنگ** : – (ک+ا+ټ+ل +ن گ) (اس+مو) د مردان پـه ضلع کښې یـوه مشـهوره قصبه ـ تـاریخي لحاظ سره بـابر پـه خپلو حملو کښې تـر دغې ځایـه رارسېدلی ؤ او یوسفزو سره ئې صلح کړې وه ـ

**کاټلنگ** : – دا ـ مـازیگری ، پـه پښتو کښـې د کاټلنگ مـازیگری یـو ضـرب المثـل گرځېـدلی دی ـ پخـوا بـه د کاټلنگ د کلي پېغلې جونـه د اوبـو راوړلو دپاره د مازیگر په وخت ډلې ډلې د کورنو نه وتلې او دغه شان بـه د ښکلو مستو پېغلو یوه مېله لگېدلې وه (نارینـه بـه د پېغلو پـه دغـولاړو د تللو جرات نهٔ شو کولی) مشهور ټپه ده :

هلـکه روغ بـه لـــېوني شې
که د کاټلنگ مازیگـری دې ولیدنه

**کاټهمنډو** : – (ک+ا+ټ+م+ن + ډُ) (اس مو) د نېپال دارالحکومت دی

**کـاټلې** : – (ک+ا+ټ+ل + ې) (اس ـ مـذ ـج ـ ې) د ښکاري ټوپـک کـارتوس د چرئیز ټوپک کارتوس

**کـاټۍ** : – (ک+ا+ټ+ۍ) (اس + مـو) (۱) د اس د زیـن هغـه برخـه چـې د لرگـي نـه جوړه وي ـ او مجازاً زین ته هم وائي (۲) تبکی ـ د توري غلاف

**کـاټي** : – (ک+ا+ټ+ي) (اس +مـو) وجود ،جسـم ، بـدن لکـه کـاټي ئـې ښـهٔ مضبوطه ده ـ

**کاټي** : – (ک +ا+ټ+ي) (اس +مو) د زین لرگینه برخه ـ چې په کابل کښـې ورتـه کاتته وائي ـ (هـ + کاټهي)

**کاټۍ** : – سخت بادام ـ کاټه ـ

**کـاټې** : – (کـا+ټ+ې) (اس+ مـذ ا+ ج ـ ټې) قلنگ وصـولوونکی ـ د چـونگي محصول ټولوونکی ـ

**کاټیاله** : – (ک+ا+ټ+یا+له) (اس +مو+ج ـ ې) لوی نهر ، لویه والهٔ

**کاټیرۍ** : – (ک+ا+ ټي+ر+ۍ) (اس +مو) کرېچۍ ، هرکاره ، ارکاره ـ

**کـاج** : – (ک+ا+ج) (اس +مـذ) ج ـ ونـه) ۱ د صنوبر ونـه ۲ د کـاش بـدل شـکل ـ کاشکې ارمان چې ۳ د بټېن (ټنې) سوری ۴ یوغرئیز بوټی

**کاجر** : – (ک+ا+ج+ر) (اس صفت+مذ) ۱ چغر ـ چې کوږ گوري ۲ کوږ نظری ـ ۳ بټ ستر گی ـ رډ ستر گی

**کاجل** : – (ک+ا+ج+ل) (هـ ـ اس ـ جم) کاجل ـ یو قسم تورکی چې پـه سترگو کښـې اچولی شي یا رانجهٔ

**کاچ** : – (ک+ا+چ) (اس ـ مذ) مشهوره لوبه

**کاچغه** : – (ک+ا+چ+غ+ه) (اس ـ مو ـ ج ـ ې) کاشوغه ـ کاشق ـ کاچوغه

**کاچو** : – (ک+ا+چو) (اس ـ مذ ـ ج ـ ن) د چاقو مقلب دی ـ یا چاقو ـ

**کاچوغړکه :** -(کا+چو+غ+ړ+ک) (ق -اس-مو) ج -کې) د مېرګاټو د لوبې یوچال دے-چې ښځې به ئې د زمکې نه اخلي په هوا کښې ئې لړه کوي او بیا ئې په یولاس رانیسي-

**کاچوغکه** :- (ک+ا+چو+غ+ک+ه) (اس-مو-ج-ې) یو بې کچه زیات تریخ او ازغن بوټے چې څاوري ئې نۀ شي خوړے-

**کاچي :-** (کا+چ+ي) (اس-مو) قاشقاش چې په پیو کښې پاخۀ کړے شي او شنه لاچي او خواږه په کښې ګډ کړے شي ځیني په کښې مېده کړي بادام غوزان ، پسته هم ګډوي-۲ د طاقت یا زکام ، ټوخي وغېره دپاره څښلے شي-فارسي بان ئې په بل ډول پخوي یعني د اوړو-خوږو مسالو نه جوړ وي او عموماً زنانه له ورکولے شي-

**کاچي :-**(ک+ا+چ+ي) ۱ لېټے ۲ هغه خوراکه چې د پخولونه پس غوړو یا شکرو سره خوړے شي.

**کاچه :-**(ک+ا+چ+ه) اسم-واحد مذکر-د یوسُترنامه-انداز تشبیه

**کاچے :-** (ک+ا+چ+ے) (و-کچګر)

**کاچیره :-** (کا+چي+رَ) (اس-مو-ج-رې) یو بوټے دے چې زیړګلونه لري دا ګلونه د وچولو نه وروستو په ډوډۍ اچوي-

**کاڅل :-** (ک+ا+څ+ل) (مص) اودل-اوبدل-

**کاڅوړے :-** (کا+څو+ړ+ے) اس،مذ،ج،ړي د یو بوټي نوم دے-چې جرړه ئې ماشومان خوري-

**کاڅۍ :-**(کا+څ س+ۍ) (اس،مو) د مچو غنې پتے- هغه پلن ځاے چې کانړے په کښې کښېښودے شي-

**کاڅي :-**(کا+څ سي) (اس-مو، ج-نې) د جولاګو مینځ-شانه

چې بې مولا څوک نا څي

د دۀ فهم د دوړ کاڅي          ارزاني

**کاخ :-** (کا+خ) (ف،اس،مذ،ج-ونه) محل-ماڼۍ-لوړ عمارت

**کاخت:-**(کا+خ+ت) (اس-مذ-ج-ونه) قحط-قحطي-قات نۀ پېدا کېدونکے

**کاختے :-**(کا+خ+تے) (اس-مذ،ج-تې) قحطي-ګراني-اړاي

**کاختي :-**(کا+خ+تي) (اس-مؤ) ۱-قحط-قحطي-سوکړه خشک سالی-وچ کال ۲-تنګسیا-قده-

**کاختي :-**(ک+ا+خ+ت+ي) (ف تر-اس-مذ-ج-ونه) د قحط کال-د سوکړې کال-خشک سالي-

**کاخۍ :-**(کا+خ+ۍ) (اس-مو) د با با خېلو څانګه ده با با خېل د ګلېشاهي د برني شمن خېل محسود دي-

**کاد:-** (کا+د) (ف-اس-مذ-ج-ونه) حرص-طمع-لالچ

**کادرے:-**(کا+د+رے) (اس-مو-ج-ري) ۱-د چرګ چرګانو شا تینګې ۲-د څاروو لرے-

**کادمے :-**(کا+د+مے) (اس-مذ) دافغانستان د وړو هلکانو یوه لوبه

**کاډ** (کا+ډ) / **کوډ/** (کو+ډ) (انګ-اس-مذ) د کبانو یو قسم چې د ځیګر تېل ئې په دارو کښې پکارېږي-

**کاډ لیورائیل:-** (ـــل+ور+ا+ئ+ل) (انګ تر-مذ) د کاډ (کب) د ځیګر تېل-چې د دارو په طور استعما لېږي او کمزورو مریضا نو له ورکولے شي

**کاذب:-** (ک+ا+ذ+ب) (ع-اس،مذ،ج-ان) ۱-دروغجن-دروغژن ۲-نقلي

د کاذب ژبه په خولۀ کښې وچه ښه ده

لکه توره د لرګي وي په غلاف     رحمان با با

**کاذب صبح :-** (ـــص+ب+ح) (عف تر) دروغجن سحر-د سحر په وخت اول په تیارۀ کښې یوه رڼا غوندې ښکاره شي خو زر غېبه شي-خلک پرې تېروځي چې ګوندې د سحر وخت شو-ځکه ورته صبح کاذب وائي-د سحر اصل رڼا د دې نه وروستو ښکاره کېږي چې ورته صبح صادق وائي

**کاذبانه:-** (کا+ذ+با+ن) (عف تر) ۱-په دروغه-د دروغو په انداز کښې

**کاذبي:-** (کا+ذ+بي) (عف تر-اس مؤ) دروغجني-دروغژني-دروغ جنتوب-درغلي

**کار:-**(کا+ر) (ف-اس مذ، ج-ونه) ۱-چار-کار ۲-پېشه-شغل ۳-غرض-مقصد په چا کار نۀ لرل ۴-روزګار-مزدوري-۵-کسب

**کار اخېستل/اغېستل :-** په کار راوستل-په کار کښې لګول-په کار لګول

**کار ازموده:-** (ـــآ+ز+مو+ده) (ف تر-صف) تجربه کار-پوهه-په کار پوهه چې په کار ئې ازمېښت کړے وي-

**کار افرین:-**(ـــآ+ف+رې+ن) (ف تر-صف) مجا زاً-خداے پاک

**کار اګاه:-** (ـــآ+ګا+ۀ) (ف تر-صف، مذ،مو-هه) په کار پوهه-د کار نه واقف

**کار امد :-** (ـــ آ+م+د) (ف تر-صف مذ،مو-ه) پکارېدونکے-مفید-سود مند

**کار اېستل، اباسل :-** (۱)-زر زر کار کول-چې ډېر کار وکړے شي ۲-مطلب اېستل-خپل غرض پوره کول-

**کار بانډه کېدل :-** کارنښتل-په کار کښې اړیکې راختل-

**کار بند:-** (ـــب+ن+د) (ف تر،صف،مذ،مو-ه) ۱-تعمیل کوونکے-عمل کښې راوستونکے-۲-مطیع-فرمانبردار ۳-اړکېدل-

**کار بند کېدل:-** ۱ -عمل کول (په کومه قاعده قانون وغېره) عمل کول -۲-اړ کېدل

**کار پرداز :-** (ـــپ+ر+دا+ز) (ف تر-صف-مذ-مو-ه) ۱-کار کوونکے-کارکن ۲-اهتمام کوونکے-انتظام کوونکے-مهتمم-منتظم ۳-کارنده کاشته

**کار پردازي:-** (ـــ پ+ر+دا+زي) (ف تر-اس-مو) ۱-کار کونه-د کار انتظام-د کار اهتمام ۲-کارنده توب-

**کار پرمخ بېول:-** (ـپ+ر+م+خ+بې+و+ل) کار وړاندې بوتلل-کار له ترقي ورکول-

**کار پرمخ وهل :-** کار پرمخ بیول-

**کار پرېښودل :-** ۱-کار نه کول-د کار نه لاس اخستل ۲-بې کاره کېدل-لکه دې مشین اوس کار پرېښودے دے

**کار پیدا کول:-** ۱-مزدوري یا نوکري پېدا کول ۲-د مشغول ساتلو د پاره خامخا څۀ شغل پېدا کول-

**کار پېښېدل :-** غرض یا حاجت پېښېدل

**کار ترکاره تېرېدل:-** موقع د لاسه وتل-فرصت د لاسه وتل-

**کار تمامول:-** ۱: کار پوره کول ۲-مړ کول-وژل

**کار تمامه :-** (ـــت+ما+م) (پ تر-صف مو-ج-مې) د کار تمامے تانیث دے

**کار تمامے :-** (ـــت+ما+مے) (پ -تر-صف) کارتماموونکے، کارخلاصوونکے ،کار زر زر ختموونکے-

**کار تمامېدل:-** ۱-کارختمېدل: کارخلاصېدل ۲-مړ کېدل ۳-وژلے کېدل (وجلے کېدل)

**کار ته تل :-** کار روزګار له تلل-مزدروۍ یا نوکرۍ له تلل-

**کار ثواب:-** (ـث+وا+ب) (عف تر-اس-مذ) د ثواب کار-د نېکۍ کار-ښۀ کار هغه کار چې کوونکي ته پرې ثواب ملاوېږي-

**کار جوړ :-** کار بودل دچا ، کار روان بودل-روزګار لګېدلے ،د امدن ښه ذریعه لرل-

**کار چلول:-** کار روانول-کار روان ساتل

**کارچوبي :-** (ـــچو+بي) (ف-اس-مو) د سلمې ستارې یا د ریښمین تارونو هغه کار کوم چې د لرګي په چوکاټ (فرېم) کښې ورکري کړه

بانديې كولې شي.(دغې چوكاټ يا فريم ته كارچوب وائي)

**كار خراب بودل:** – حالات خرابول ، معامله خرابول ، حالات يا معامله ورانېدل.

**كار خرابول:** – په كاركښې ورانے راوستل.په كاركښې اړيكه اچول.

**كار خرابېدل:** –١.په كار كښې ورانے راتلل .په كار كښې اړيكه پېښېدل ٢.معامله خرابېدل.منصوبه خرابېدل.

**كار خېر:** – (ـــخې +ر) (عف تر.اس.مذ) ١.(و.كار ثواب) ٢د ښېګړې كار.

**كار دار:** – (ــــدا+ر) ناظر.منېجر.په كار نظر لرونكے.

**كار دان:** – (ــــدا+ن) (ف تر.اس صف ند ج .ان) په كار پوهېدونكے .د كار پوهاند تجربه كار.هوښيار.

**كار داني:** – دكار كولو صلاحيت

**كار درستول:** –ـــ وران كار سمول.د وران كار نه نقص لرې كول.اصلاح كول .

**كار راښكل:** – زر زر كاركول.زر زر كار ختمولو كوښښ كول.

**كار راغونډول:** – دكار ختمولو كوښښ كول.

**كار روانول:** – ١.روزګار شورو(شروع)كول كارله حركت وركول ، (٢) حاجت پوره كول.

**كار روائي:** – (ـــك+وا+ئي) (ف تر.اس.مو) كاركونه.كار روانول كارسازي

**كار زار:** – (ـــزا+ر) (ف تر.اس.مذج ـــونه) جنګ.لړائي.نختښته.جګړه .مقابله.معركه.

**كار ساز:** –(ـــس+ا+ز) (ف.تر.اس.مذ.ج.ان) كار جوړوونكے.كار سموونكے كتابه.خداے پاك

**كار سازي:** – (ـــسا+زي) (ف تر.اس.مو).كار جوړونه.كار روانونه.ضرورت او حاجت پوره كول.

**كار سرانجام كېدل:** – كار سرته رسېدل. كارپوره كېدل.

**كار سرته رسېدل:** – كار پوره كېدل. كار خلاصېدل.كار ختمېدل.

**كار سرينول:** – ترقي كول.ورځ ښهٔ كېدل.

**كار سره كار لرل،خپل:** – دخپل مطلب دكار نه سيوا د بل چا په كار كښې غم غرض نۀ كول. د بل په كار كښې دخل نۀ وركول.

**كار شناس:** – (ـــش + نا+ش) په كار پوهنه.كار پېژندونكے.

**كار ښودل:** – هنر ورزده كول.هنر ښودل د صنعت يا د دفتر وغېره كار ښودل.

**كار فرما:** – (ـــف +ر+ما) (ف تر.اس.مذ) ١.حكم كوونكے.د كار فرمائش كوونكے.كمانډر.د كار نګران يا جمعدار.

**كار كتل:** – كار ګزاري كتل.د چا د كار معائنه كول.كتنه كول.اصطلاح ده. چاله كاركتل په خوارۍ اړول.

**كار كردګي:** – (ـــك+ر+د+ګ+ي) (ف تر .اس.مو) ښهٔ كار كونه.نمايا كار كونه. نمايا كارنامه.

**كار كن:** – (ـــ+ك+ن) اسم صفت.واحد.مزكر، كاركوونكے.خواري كښ

**كار كوونكے:** – (ـــك+وو+ن+كے) ف تر.اس.مذ.ج.كي) هغه چې كار كوي. كاركن.

**كار كېدل:** - مطلب پوره كېدل.غرض ترسر كيدل.مقصد پوره كېدل.

**كار ګزار:** – (ــــګ+زا+ر) كا رسر ته رسوونكے .د بل دپاره كار كوونكے . ايجنټ.

**كار لرل:** – غرض لرل.تعلق لرل.ګنجې په سر تار نۀ لري. په چا كار نۀ لري.

**كار نامه:** – (ـــنا+م) (ف تر+اس.مو+ج.مې) اعلى كار كونه.ښهٔ كار كونه.په جنګ وغېره كښې څۀ زورور كار سرته رسونه .يادګاري كار.هغه لوے كار چې ياد پاتې شي.

**كاروبار:** – (ـــ(رو) +با+ر) (ف تر.اس.مذ) كار روزګار.شغل مشغله.

**كاروباري:** – (ـــ(رو) +با+ري) (ف تر.اس) ١.كاروبار كوونكے .تجارت كوونكے ٢.كاروبار سره تعلق لرونكے.كاروبارسره منسوب ٣.بېوپاري

**كار ورانول:** – كار خرابول په كار كښې خرابي پېدا كول.

**كار زبادل:** – ١.كارئې درله خراب كړو.٢.مړ ئې كړو يا ډېرنقصان ئې وزبادهٔ.

**كار بل:** – (ب +ل) (ب.ته.اس.مذ) مجازَ(بازاري) بدفعلي.مجامعت.غلام

**كار بلې:** – ناپكاره.چې پكار نۀ شي راوستلے كېدے له كاره وتے.

**په كار (باند)اچول:** – په كار لګول.په كار اخته كول

**په كار راتلل:** – پكارېدل.فائده مند ثابتېدل.

**په كار كښې غوټه اچول:** – په كار كښې اړيكه راوستل.په كار كښې بندېز را وستل.

**په كار كښې كار پيدا كول:** – يو كار خلاص نۀ وي.چې په مېنځ كښې بل كار شروع كول

**د كار ايستل:** - بېكاره كول

**د كار سړے:** - (د ـــس+ړے) (پ تر .اس .مذ.ج .ړي) دكار لائق سړے. پكارېدونكے سړے.د مطلب سړے.

**د كار غل** (ـــغ +ل) (ف پ تر.صفت) د كار نه ډډه كوونكے.د كار نه پټېدونكے .سست.په كار كښې ئې پاتې راتلونكے.

**د كار ورځ** (ـــو+رك+(د) +ز) (پ تر .اس .مو.ج .ئې) هغه ورځ چې كار په كښې كولے شي.(د چتې د ورځې ضد)

**له كار وتل:** ١.بې كاره كېدل.د كار جوګه نۀ پاتې كېدل. ٢.(په څۀ وجه) دخپل كارنه پاتې كېدل .دبل مصروفيت په وجه دخپل اصل كار څخه پاتې كېدل

**كار بودے:** – يوه اړيكه ده! يوشرط دے.يوه ګرانه ده.

**كار:** – (كا+ر) (اس.مذ) زمكه.ښكته لكه ټولې ونې پورته ځي.خرمخه ونه كارته ځي.

**كاراكاس:** – (كا+را+كا+س) (اس) د وينزوېلاد ملك لوے ښهر او دارالحكومت.

**كار بسكه:** – (كا+ر+ب+اس+ك) (اس .مو) واحد .جمع كاربيسكې. ١.پنبه ٢.مالوچ

**كاربن:** – (كا+ر+ب+ن)

**كاربون:** – (ـــبو+ن) (انګ.اس.ند) ١.يوقسم كيمياوي طبيعي ماده چې د كاڼي دسكروټو وغېره نه جوړولے شي.د خالصې كوئلې اصل كاربن ډائي اوكسائډ يو ګېس دے.

**كاربن:** – (كا+ر+ب +ن) (اس.مذ .ج.ونه) يوقسم پخوانے لنډ خولې ټوپك غربين.غرابين.

**كارتوس:** – (كا+ر+تو+س) (انګ.اس.ج.ونه) كارتوس: چې په كښې بارود دارو چرې ډكې شوې وي دا په ټوپك يا په تماچه كښې چلولے شي)

**شلخې ــــ:** (ش +ل+خې ـــ) (انګ.تر.اس.ج.ونه) ديسي كارتوس

**كارټون:** – (كا+ر+ټو+ن) انګ.اس.مذ.ج.ونه ) هغه تصوير چې په كښې په كوم (لوے) سړي پورې يا په كوم كار يا معاملې باندې ټوكه او خندا شوې وي.خو چې څۀ خاص فائده من مطلب هم ترې خېژي په اخبارونو رسالو كښې ډېر چاپ كېږي.

**كارټونسټ:** – (كا+ر+ټو+ن+اس+ټ) (انګ .اس .مذ .ج .ان) كارټونونه جوړوونكے - مصور .

**كار جوړه:** – (كا+ر+جو+ړ)

**ــــړے:** – (ـــړے) (پ تر .اس صفت) هغه چې چارې جوړوي .كامران .

کامیاب

**کارچار**: - (کا+ر+چا+ر) (ب تر - اس - مذ) شغل - پېشه - کارروزګار -

**کارخانه**: - (کا+ر+خا+ن) (ف تر - اس - مذ - ج - ئې) ۱- د کار کولو ځاے - کارګاه - ۲- د ځېزونو د جوړولو او تیارولو لوے ځاے چې ګڼ کسان په کښې په عوض کار کوي -

**کارخانه چلول**: - کار خانه کښې ځېزونه جوړول -

**کارخانه دار**: - (ــــ دا+ر) (ف تر - اس - مذ ج - ان) ۱- د کارخانې مالک - کارخانې واله - د کارخانې څښتن - ۲- د کارخانې افسر یا مشر

**کارخانه داره**: (ـــ دا+ر) فپ تر - اس - مو - ج - رې) د کارخانه دار تانیث دے

**کارخانه داري**: - (ـــــ دا + ري) (ف تر - اس - مو) ۱- کارخانه لرنه - د کارخانې څښتن توب - ۲- د کارخانې کار - ۳- د کارخانې افسري

**کارخانه دقدرت**: - (ـــ د+ق+د+ر+ت) (ف تر - اس - مو) مجازاً - دا دنیا - دا کائنات

**کار خېل**: - (کا+ر+خې+ل) (اس - مع) د احمد خېلو ځانګه ده - (احمد خېل د زړاخېل د عمزوني د ملي زاد) داوړ دي -

**کارد**: - (کا+ر+د) (ف - اس - مذ ج - ونه) چاړهٔ

**کاردار**: - (کا+ر+دا+ر) (ف - تر - اس ، مذ ، ج ــــ ان) ۱- عهدې دار - منصب دار - ۲ - کارکوونکے ۳- په کار مقرر شوے - مامور - ناظر

**کارداره**: - (کا+ر+دا+ر) (فپ تر - اس مو ، ج ـــ رې) د کاردار تانیث دے

**کارداري**: - (کا+ر+دا+ري) (ف تر - اس - هو) ۱- کارلرنه ۲- ماموري - ماموریت - ناظري -

**کاردان**: - (کا+ر+دا+ن) (ف تر - اس صف - مذ ج ـــ ان) په کار پوهېدونکے هوښیار - تجربه کار - کار ازموده -

**کارداني**: - (کا+ر+دا+ني) (ف تر - اس - مو) په کار پوهېدنه - تجربه کاري هوښیاري -

**کاردک**: - (ک+ر+د+ک) (اس - مذ - ج) کارد کونه چاړهٔ

**کارډ**: - (کا+ر+ډ) (انګ - اس - مذ ج - ونه) ۱- د ډاکخانې کارډ - پوسټ کارډ - چې د چټۍ په طور استعمالېږي خو په لفافه کښې نهٔ اچولے کېږي - ۲- کارټ - د بل کوم ضرورت د پاره چاپ شوے کارډ - ۳- سخت او کلک کاغذ ، د وادهٔ ښادۍ دعوت نامه د بلنې کارډ -

**وزټنګ کارډ**: - (و+ز+ټ+ن+ګ ـــــ) (ان - اس - مذ - ج - ونه) هغه وړوکے شان کارډ چې په کښې دسرې نوم - پېشه او پته - د ټېلیفون نمبر او (مختصره) پته لیکلې وي - عموماً په جېب کښې ساتلے شي - او چې چا سره ملاقات کول غواړي - نو اول دغه کارډ ورته ولېږي -

**کارزار**: - (کا+ر+زا+ر) (ف + اس - مذ) جګړه - جګاړ - جنګ ، معرکه

**کار ساز**: - (کا+ر+سا+ز) (اسم صفت - واحد - مذکر) کار جوړونکے ، چاره ګر

**کارستان**: - (کا+ر+س+تا+ن) (ف - اس - واحد - مذ) چالاک - هوښیار - کار ویستونکے - کارویستنه

**کارښت**: - (کا+ر+خ+ښ+ت) (اس مذکر - ج - ونه) ۱- هغه اله چې د انګورو شیره پرې وښکلے شي - ۲- هغه لوے لوښے یا حوض چې په کښې د انګورو شیره جوړولے شي -

**کارښت**: - (کا+ر+خ+ښ+ت) (اس - مذ - ج - ونه) کړۍ - دجولا کارګاه

**کارغهٔ**: - (کا+ر+غ) (اس - مذ - ج : کارغان) کاغه - کارګه ، قارغهٔ ، تور رنګ لرونکے یو مارغهٔ چې حرام ګڼلے شي. کړاغ

**کارغهٔ پېښه**: - (ـــ پ+ښ یا ـــ خ +پ) (پ تر - اس مو) یو قسم ګیاه ده -

**کارغهٔ پل**: - (ــــ پ+ل) (پ تر - اس - مذ) یو قسم دوائي ده - د کارغهٔ د پنجو په شان یو قسم بوټے چې په سپرلي کښې شین کېږي - او په وربېژو کښې د خوشبو دپاره اچولے شي -

**کارغهٔ ټکۍ**: - (ـــ ټ+ک+ۍ) (پ تر - اس - مو) یو قسم بوټے دے - مرغۍ ، ځکۍ ، پنبرک

**کارغهٔ ټونګه**: - (ټو+ن+ګ) (پ تر - اس - مو جمع کارغهٔ ټونګې) دګل لاله یو قسم چې ګل ئې شین وي - او دننه په غوزه کښې ئې تور تخم وي -

**کارغهٔ یوسکۍ**: - (ـــ یو+س+ک+ۍ) (پ تر - اس - مو) غوا بېژے - ژیټے ، د چینجو هغه تاو راتاو کور چې د سمندر په غاړه موندے شي

**کارفرما**: - (کا+ر+ف+ر+ما) (ف تر - اس - مذ) ۱- حکم کوونکے - حکم چلوونکے - ۲- کار اخستونکے - په کار پوهه

**کارفهم**: - (ک+ر+ف+ه+م) (ف - تر - صف مذ ، مو ـــ ه) په کار پوهېدونکے - په کار پوهه تجربه کار - کاردان

**کارفهمي**: - (کا+ر+ف+ه+ي) (ف تر - اس - مو) په کار پوهېدنه - تجربه کاري - هوښیاري - کارداني

**کارک**: - (کا+ر+ک) (انګ - اس - مذ) کاک - کاګ د ربړ په شان لچک واله ځېز - چې عموماً د بوتلونو د بندولو د پاره پکار ولے شي - (عموماً خلک ورته کاک وائي)

**کارکسب**: - (ک+ر+ک+ه+س +ب) (اسم - واحد - مذکر) زیست روزګار - دنده - کار روزګار

**کارکن**: - (کا+ر+ک+ن) (ف تر - صف - اس مذ ، ج - ان مو) ۱- چارندونکے ، مزدور - کارکوونکے - کار ستونکے - په کار کښې عملي برخه اخستونکے - ۲- محنتي خواري کښ -

**کارکوټے**: - (کا+ر+کو+ټے) (اس - مذ) یو قسم ګیاه ده چې د څاروو خوراک ده - خلک ئې کچه د سلاد په توګه د ډوډۍ سره خوري -

**کارګا**: - (کا+ر+ګا) (ف تر - اس مونث - ج - ونه) ۱- کړۍ ۲- د پرتوغانبنونو دجوړو لوے فریم - د لرګي هغه فریم چې زنانه پرې پرتوغانبنونه جوړوي -

**کارګاه**: - (کا+ر+ګا+ه) (ف - تر - اسم ج - ونه) ۱- د کارکولو ځاے - هغه ځاے چرته چې (په کښه) څهٔ کار کولے شي - ورکشاپ کارخانه

**کارګزاري**: - (کا+ر+ګ+ز+ا+ري) (ف تر - مو) ښهٔ کار کونه - دښهٔ کار کولو بیان - د حکم یا تجویز وغېره په عمل کښې راوستنه - ځینې خلک د فارسي په الفاظ کښې د ,,ذ،، په ځاے ,,ز،، لیکي - د هغوي په خیال په فارسۍ کښې ,,ذ،، نشته خو دا درسته نهٔ ده د فارسۍ په پخواني الفاظو کښې ,,ذ،، موجود دے -

**کارګر**: - (کا+ر+ګ+ر) (ف تر - صفت مذ) ۱- اثر کوونکے - مؤثره - تاثر لرونکے - ۲- فائده مند مفید - فائده رسوونکے -

**کارګر کېدل**: - اثرناک ثابتېدل - کامیاب ثابتېدل -

**کارګري**: - (کا+ر+ګ+ري) (ف تر - اس - مو) اثر کونه - مؤثري - فائده مني

**کارګو**: - (کا+ر+ګو) (انګ - اس) مال - پېټے - بار - هغه تجارتي وغېره سامان چې په جهاز وغېره کښې د یو ځاے نه بل ځاے ته لېږلے یا وړلے شي -

**کارګوټے**: - (ک+ر+ګو+ټے) (ف پ - تر - اس - مذ) د کار تصغیر (لنډیزه) وړوکے کار - ورکوټے شان کار -

**کارګهٔ**: - (کا+ر+ګ +ه) (اس - مذ ، ج - ان) ۱- کارغه - قارغهٔ - قارغه - زاغ ۲- هوښیار - زیرک - چالاک -

**کارګهٔ ټکۍ**: - (کا+ر+ګ+ټ+ک+ۍ) (اس - مو) یو قسم بوټے - پنبرک - د پنبرک ساګ -

**کارنامه**: - (کا+ر+نا+م) (ف تر اس - مو - ج - ې) توره - مړانه - څهٔ لوے مهم ترسره کونه - یادګاري کار -

**کارنامې**: - (کا+ر+نا+ې) (اس - ج) د کارنامه جمع صیغه

**کارنامې لرل:** – لوے لوے او د مړانې کارونه سرته رسول.

**کارناوال :** – (کا+ر+نا+وا+ل) کارنېوال مېله. د عېش و عشرت تېرونې جشن د عيسايانو مېله.

**کارنده :** – (کا+ر+ر+ن+د) (ف. صف مذ مو) کارکوونکے. د کارمړنے

**کاروان :** – (کا+ر+وا+ن) (ف. اس. مذ. ج ـــ ونه) د تاجرانو ياد مسافرانو په جمع سره په اُوښانو وغېره سفر کول. قافله. جوپه. بهير

**کاروان سالار:** – (ـــ سا+لا+ر) (ف تر+اس+مذ) د کاروان مشر. دقافلې سردار د قافلې مشر.

**کاروان سرایَ :** – (ـــ س+را+یَ) (ف تر. اس مو) هغه لوے عمارت چرته چې به پخوا کاروانونه ايساربېدل. په دې کښې به د استوږنې نه علاوه د هغو د اوښانو، اسونو وغېره ځاے هم ؤ نورې اسانتياګانې به هم وې.

**کاروائي :** – (کا+ر+وا+ئي) (ف. اس. مو) ۱. په عمل کښې راوستنه. په کار عمل کونه. ۲. په يو حکم يا منصوبې دعمل درامد بيان يا روئداد تعجيل د کار. عمل درامد.

**کاروبار:** – (کا+رو+با+ر) (ف تر. اس. مذ. ج. ونه) ۱. کارروزګار. دنده ۲. بندوبست. انتظام دروزګار ذريعه

**کاروبار له ځان اېستل :** – د کارروزګار او دندو نه ځان فارغ کونه.

**کاروبار نه وتل:** – د کاروزګار نه پاتې کېدل. څۀ کارنۀ کول.

**کاروباري :** – (کا+رو+با+ري) (ف تر. اس صفت. مذ، ج. ان) ۱. هغه کس چې څه کاروبار کوي. کارروزګار کوونکے. تجارت کوونکے. ۲. کاروبار سره متعلق. کاروبار ته منسوب لکه: کاروباري جرګې.

**کارول :** – (کا+ر+و+ل) د قهرول بدل شکل دے. ۱. قهرول. غصه کول سختول ۲. پارول. لکه د مچو وغېره چېړل. ۳. په استعمال کښې راوستل ۴. د ولې يا د نهر کنستل او صفا کول.

**کاره :** – (کا+ر) (اس. مو ج ـــ رې) ۱. لويه ارت خولې ټوکرۍ. لويه ټوکره. ۲. هغه ټوکرۍ چې پلن والے ئې کم وي د نلونو نه جوړه شوې وي دشنولختو يا د ډکوغټېه ټوکرۍ

**کاره :** – (کا+ر) (اس. مو) يوقسم. غوښت. ارزن

کاره :- (کا+ر) (اس. مو، ج. ې) کاره کرېچۍ

د تـن غوښـه بـې بـلا سـخته بـوټۍ ده
چې لړېـوس نـه شـوه دعشـق پـه کـاره

**کارۍ :** – (کا+ر+ۍ) (اس. مو) ۱. هغه کجاوه چې په کښې انګور وړے شي ۲. هغه لويه ټوکرۍ چې د لښتو نه جوړېږي ۳. خليج

**کاري :** – (کا+ري) (ف+صف) ۱. اثرناک. موثر ۲. ژور (ځور) ډونګے. مهلک

**کاري :** – (کا+ري) (هـ. صف) د غشي. د تورې يا د بلې کومې داسې الې هغه زخم چې جور(ژور) او مهلک وي. غرق پرهار. رساګزار. خطر ناک زخم.

**کاري :** – (کا+ري) (ف تر. اس) د کار. کار کوونکي. لکه: کار وګړي. د کار سړے. محنتي. دګټې وړ.

**کارېدل :** – (کا+رې+د+ل) په کار راوستلے کېدل. صرف کېدل.

**کارېدل :** – (کا+رې+د+ل) (مص). قمرېدل. د ولې يا د نهر کنستلے کېدل او صفا کېدل

**کارېز :** – (کا+رې+ز) (ف. اس. مذ، ج ـــ ونه) لښتے. د پټو داوبۀ خور دپاره يوه خاصه طريقه. چې دزمکې د لاندې په خاص ډول نالۍ جوړه کړے شي چې اخري سر ئې د زمکې نه بهر پټو ته ورسي. قنات سپرغۍ.

**کارېزک :** – (کا+ر+ې+ز+ک) (و ـــ کارېژد) هغه بوټي چې د غمنو په فصل کښې ځانله راټوکېږي.

**کارېزه :** – (کا+رې+ز) (اس. مو ج ـــ زې) يو ازغن بوټے. چې د غمنو په پټي کښې په خپله کېږي. بوټے ټول زېړ شي. دپاڼو نه چاپېره ئې نرې نرې ازغي (اغزي) وي. تخم ئې تور وي عموماً خلک ئې د غمنو دانو سره يو ځاے وريت کړي او خوړے شي.

**کارېژه :** – (کا+رې+ژ) (اس. مو، ج. ژې) يوقسم نازک بوټے دے. چې ښۀ خوند لري. اکثر د غوښتو سره يا د ولو په غاړه په خپله پېدا کېږي.

**کاريګر:** – (کا+ري+ګ+ر) (ف. اس مذ، ج ـــ ان) ۱. کارکوونکے. هنرمند. هنري کارونه کوونکے. ۳. لوهار. اهنګر

**کاريګره :** – (کا+ري+ګ+ر) د کاريګر تانيث دے

**کاريګري :** – (کا+ري+ګ+ري) (ث+اس+مو) هنر مندي. په ښکلا او هنر سره کارکونه.

**کارين :** – (کا+ري+ن) (اس. مذ) غرئيزه زمکه. چې کله کله پرې کر کرونده کولے شي. کاڼيزه زمکه چې کرونده پرې کمه کوزه کېږي.

**کارينده :** – (کا+ري+ن+د) (ف تر. اس. مذ، ج. کان) ۱. کارکوونکے. کاريګر. محنت کوونکے. محنتي سړے. ۲. نمائنده.

**کاړ :** – (کا+ړ) (اس. مذ) ۱. کاڼيزه زمکه. سنګلاخ ۲. درنګ. معدن. د سپينو زرو درنګ.

**کاړ ساغ :** – (کا+ړ+سا+غ) (اس. صف. مذ) (وګوره ـــ کاړساو)

**کاړساو:** – (کا+ړ+سا+ؤ) (اس. صف مذ) ۱. هغه سړے چې وجود ئې سخت او مخ ئې اوږد وي. ترش رو ۲. وچ کلک نرے نروچکے سړے چې مخ ئې اوږد وي

**کاړو :** – (کا+ړو) فامرد. تګن

**کاړو کوړ:** – (کا+ړو+کو+ړ) (اس صوت. مذ) د لوښو د يوبل سره د لګېدو کړنګا کړونګا. بې ترتيبه اواز

**کاړه :** – (کا+ړ) (اس. مو، ج ړې) ۱. هغه پخلے چې د غنمو د اوړو. غوړو او د سبزو نه پخولے شي. شِيره. ۲. هغه نرم خوراک چې مريضانو د پاره دنشاستې او وړو وغېره نه جوړولے شي. اريړه. کبوړے.

**کاړه :** – (کا+ړ) (اس. مو. ج ـــ ړې) ۱. د خولو د راوستلو څه ګرم څيز يا څۀ دوائي. د خولو د راوستلو دارو ۲. دمړزانو د جنګولو مېدان. ۳. دکشتۍ مېدان. اکاړه. ۴. ګردان. د سبق بيا (بيا) وي

**کاړه :** – (کا+ړ) (اس مو، ج ـــ ړې) ۱. دمړزانو د جنګولو مېدان ۲. د کُشتۍ مېدان. (کاړه.

**کاړه :** – (کا+ړ) (اس. مو. ج ړې) شکنجه. چې غلو. مجرمانو ته پرې عذاب رسوي

**کاړې واړې :** – (کا+ړې+وا+ړې) (و ـــ کاړي داړي)

**کاړي :** – (کا+ړي) (صف ـــ مو) کوفته. قيمه

**کاړي :** – (کا+ړي) (اس ـــ مو) لاوڼ. چې د مستو شوملو (شلومبو) نه جوړولے شي داغ کړي ماستۀ (هند. کړي)

**کاړي واړي :** – (کا+ړي+وا+ړي) (صف) ۱. سست کمزور. کاهل ۲. پرېشانه

**کاړے :** – (کا+ړے) (اس ـــ صف) کوفته. ټکېدلے. ټکولے شوے.

**کاړين :** – (کا+ړي+ن) (اس صف. مذ، مو ـــ ه) ۱. کاڼو سره متعلق. کاڼي ته منسوب. ۲. دکاڼي نه جوړشوے. ۳. کاڼيزه (زمکه) سنګلاخ

**کاړينګ :** – (کا+ړي+ن+ګ) (صف. مذ. مو ـــ ه) بينګے. هغه چې کوږګوري. کانګ. چپک. چغر

**کاز :** – (کا+ز) (اس. مذ، ج ـــ ونه) ۱. شوق. اشتياق. رغبت ۲. د ځنګلي ځناورو د اوسېدو ځاے ۳. غار د صنوبر ونه ۴. ديو بوټي نوم ۵. څپر. چوپال ۶. قېنچي. بياتي

**کازب :** – (کا+ز+ب) توره خړه. ډېر وختي سحر. صبح کاذب. سحروختي. سپينه

خولۀ په خالو توره

پرې کازب راځي اوبو له (غاړه)

**کازمن :** - (کا+ز+م+ن) (صف مذ ،مو ـــ ه) مشتاق ـ خواهشمند ـ شوق لرونکے ـ حاجتمند ـ

**کازميکي :** - (کا+ز+مي+کي) پلوشو سره تعلق لرونکے ـ کازمک پلوشو يا شعاعونو ته منسوب ـ

**کازي خر :** - (کا+زي+خ+ر) (اس ـ مذ ،ج ـــ ونه) يوه داسې خره حشره چې ډېرې پښې لري ـ

**کاږ :** - (کا+ږ) (صف ـ مذ ،مو ـــ ه) بيـنگے ـ هغه چې کوږ گوري ـ شوق ـ ارزو ـ کانگ ـ چيک ـ

**کاړبل :** - (کا+گ+ړ+ب+ل) (اس ـ مذ ، ج ـ ان) کوړ ـ مشهور ځناور ـ کفتار ـ په اردو کښې ورته بُحبو وائي

**کاړل :** - (کا+گ+ړ+ل) (مص) وکاړل ـ وښکل ـ وباسل ـ

**کاړۀ :** - (کا+گ+ۀ) (صف ـ مذ ـ ج) ۱ ـ د کوږ بدل شکل دے ـ د مغيره ځينو تورو سره راځي ۲ ـ د کوږ جمع ده

**کاړۀ :** - (کا+گ+ۀ) (اس) مشهور دارو باديان

**کاړۀ واړه :** - (کا+گ+ړ+وا+گ+ړ) (صف ـ ج ،مو ـ کږې وږې) د کوږ ووږ جمع ده ـ هغه ځيزونه چې ډېر کاړۀ وي ـ (واړۀ تابع مهمل دے او د تاکېد دپاره راځي)

**کاړۀ ويلنے :** - (کا+ړ+ۀ) کاړۀ او ويلنے ـ باديان او ځنگلي پودينه ـ (دادوه جدا جدا ځيزونه دي عموماً د گېډې د درد دپاره ورکولے شي ـ خو ځينو لغتونو کښې ئې معنې باديان ده ـ خو په ځينو کښې ورسره (خواږه ويلني) هم ليکلے دي)

**کاړي :** - (کا+گي+ړي) د کږې بدل شکل دے ـ

**کاس :** - (کا+س) (ع ـ اس ـ مذ ،ج ـــ ونه) د شرابو پياله ـ د شرابو جام مطلق پياله ـ

**کاسب :** - (کا+س+ب) (ع ـ اس مو ـ ج ـ ان) چارے ـ چاروکے ـ کارکسب کوونکے ـ کسب کوونکے (کسب گر) کاريگر ـ په کار کسب گټه کوونکے ـ

**کاسبه :** - (کا+س+بَ) (عپ تر ـ اس) د کاسب ،تانيث دے

**کاست :** - (کا+س+ت) (ف) اسم مذ ۱ ـ دروغ ـ ۲ ـ نقصان ـ تاوان کمے ۳ ـ د يو بوټي نوم ـ

**کاسج :** - (کا+س+ج) (ف ـ اس ـ مذ) شکوڼ ـ يوقسم ځناور ـ ششکے

**کاسد :** - (کا+س+د) (ع ـ صفت مذ) ۱ ـ کوټه ـ ناسره ـ بې اصله ـ بې رواجه ـ ۲ ـ چې خالصه نۀ وي ـ گډون واله ـ

**کاسر :** - (کا+س+ر) (ع+اس+مذ ،ج ـــ ان) ماتوونکے ـ ټوټې کوونکے

**کاسل :** - (کا+س+ل) (ع ـ اس ـ فا ـ ع ـ مذ ـ ج ـ ان) سست ،کاهل ـ بې پروا

**کاسني :** - (کا+س+ني) (اس ـ مذ) ۱ ـ شحکے ـ مشهور گياه بوټے ـ چې په دارو کښې استعمالولے شي ـ تبه کموي ۲ ـ سوربخن نيله رنگ ـ

**کاسونې :** - (کا+سو+ن+ے) (اس ـ مذ ،ج ـ نې) د يو بوټي نوم دے ـ چې سرۀ گلونه کوي ـ خلک ئې وچوي او خوري ـ

**کاسه :** - (کا+س +ه) [ف ـ اس ـ مو ـ ج ـ ې] پياله ـ جام ـ کنډول ـ کټورے ـ ټوټه ـ ټوټې ـ

**کاسه بازي :** - (ـــ با+زي) (ف تر ـ اس ـ مو) يو قسم لوبه ياگډا ده ـ چې په کښې د دهوکې نه کاراخستے شي ـ مجازاً ـ مسکاري ـ چل ول توب ـ حيله بازي

**کاسه پرې اېښوول يا نسکوول :** - خبره پټول ـ يه خبره يحم ده اچول ـ

**کاسه چشم** (ـــ چ+ش+م) (ف تر ـ اس ـ مو) سترغلے ـ سترغله ـ د سترگو کاسه دسترگو وغالے

**کاســه گــر :** - (ـــ گ+ر) (فـپ+تر اس صـف ج ـــ ان ،مـو) کاسې جوړوونکے ـ شمشـتـي ـ شـکـرناتے (خصوصاً دلرگـي کـالي جـوړوونکے) کنـډمل جوړوونکے ـ

**کاسه لېس :** - (ـــ لې +س) (ف تر ـ صف ـ ج ـ ان) تالي څټ ـ جوټه تالے څټونکے ـ خوشامد گرے ـ کمينه ـ

**کاسه لېسي :** - (ـــ لے +سي) (ف تر ـ اس ـ مو) تالي څټ توب ـ خوشامند گري

**کاسه کړوپ :** - (کا+س+ک+ړو+پ) (پ +تر+اس) شمشتي ـ

**کاسي :** - (کا+سي) (اس ـ مو) د پښتنو يو مشهورې قبيلې نوم ـ

**کاسې :** - (کا+س+ې) (اس ـ مو) ۱ ـ په مچغنه کښې د کانې د کښېښنودلو پټه ـ کاڅې ۲ ـ په ليندۀ کښې د کانې کښېښنودلو ځاے ـ

**کاسے :** - (کا+سے) (اس ـ مذ ،مو ـ سې) د کاسي قبيلے يو فرد ياغړے ـ

**کاسير :** - (کا+سی+یا) (صف، مذ ،مو ـ ه) بدچلن ـ شهواني خيالات لرونکے ـ د بې شرمۍ خرابۍ خبرې کوونکے ـ حرامکار ـ

**کاسير توب :** - (ـــ تو+ب) (و ـ کاسيري)

**کاسيره :** - (کا+سی+ر) د ,,کاسير،، تانيث دے ـ لکه : چې خپله چرگه مې کاسيره نۀ وے نو بـل کره به ئې اگۍ نه اچـولې (متل)

**کاسيره :** - (کا+سي+ر) (اس ـ مـو ج ـــ رې) ۱ ـ يـوه پخوانۍ سکه ـ چې د پخوانۍ پېسې څلورمه برخه ده ـ ۲ ـ ډېره معمولي سکه ـ دټولو نه د کم قميت سکه ـ اوښ په کاسيره وۀ ،خو چې کاسيره نۀ وۀ نو گران وۀ ـ (متل)

**کاسيري :** - (کا+سی+ري) (اس ـ مـو) کاسيرتوب ـ بـدچلني ـ بې شرمي ـ شهواني خبرې يا کارونه کونه ـ حرامکاري ـ

**کاسيرې :** - (کا+سی+ې) ۱ ـ د کاسيره (مونث جمع ده ۲ ـ وغېره (متغير)شکل دے

**کاسيرې سترگې :** - (ـــ س+ت+ر+کې) بې شرمه سترگې ـ بې حياسترگې ـ د حرامکارۍ ورې سترگې ـ

**کاش :** - (کا+ش) (تمنا تـورے) د کـومې خبرې خواهش ،تمنا يـا حسرت او افسوس د ښکارندولو په وخت وئيلے شي ـ کاشکې ـ کشکې ـ

**کاش :** - (کا+ش) (اس+مذ+ج+ونه) د ,,قاش،، بدل شکل دے ـ د تماچې د کښېښنودو دغرمنې کڅوره ـ د تماچې تېکے ـ

**کاش :** - (کا+ش) (اس ـ مذ ،ج ـــ ونه) د زين کا ټي ـ په زين کښې لرگينه حصه ـ

**کاشان :** - (کا+شا+ن) (اس ـ مو) په ايران کښې ديو ښار نوم ـ

**کاشانه :** -(کا+ش+نَ) ۱ ـ ووکے شان کور ـ جونگړه کوډله ـ څپر ۲ ـ د شته منو خلکو د کور ـ لوے او ښکلې کور ـ فېشني نوم ـ (دا لفظ متضادي معنې لري په فارسي کښې په دوېمه معنیٰ کښې نۀ استعمالېږي)

**کاشت :** - (کا+ش+ت) (ف ـ اس ـ مذ) کر ـ کرنه ـ کرکرونده ـ

**کاشت کار :** - (ـــ کا+ر) (ف تر ـ اس ـ مذ ،ج ـــ ان) کرونکے ـ کرکوونکے ـ دهقان زميندار ـ مزارع ـ کسان

**کاشت کاري :** - (ـــ کا+ري) (ف تر+اس ـ تو) د کرکرونډې کـار ـ زمنيداري دهقاني کرکرونده ـ

**کاشرے :** - (کا+ش+رے) (و ـ کاشين) کلپۍ ـ گلدسته

**کاشـعر :** - (کـا+ش+غ+ر) (اس ـــ مـو) د خبـر پښـتـونخوا قطب تـه پـه چينـي ترکستان کښې يو پخوانے ښار ـ

**کاشف :** - (کا+ش+ف) (ع ـ اس صف ـ مذ ،ج ـ ان کشف کوونکے ـ پرانستونکے ښکندوونکے ـ ښکاره کوونکے ـ

**کاشفه :** - (کا+ش+ف) (عپ تر ـ اس مو ،ج ـــ فې) د کاشف تانيث دے

**کاشک :** - (کا+ش +ک) (اس ـ مذ ـ ج کا شکرنه) کاشوغه ـ قاشق وړه څمڅۍ ـ سيپۍ

**کاشکنوله :** - (کا+ش+ک+نو+لَ) (اس ـ مؤ ـ ج ـ لې) (مرغابيو يوقسم دے)

**کاشواز :** - (کا+ش+وا+ز) (اس ـ مذ) مشروټ سرے ـ فضول سرے ډوزمار ـ

داسې بنده چې خلکو ته ځان غټ حسابوي۔

**کاشوغه**: – (کا+شو+غَ) (اس۔مؤ۔ج: کاشوغې) قاشوغه۔قاشق۔وړه د چایو چمچه۔کاچوغه۔

**کاشي**: – (کا+شي) (ف۔صف) ۱۔د رنګ روغن سره تعلق لرونکې ۲۔په رنګ روغن کښې جوړه شوې۔۳۔یوقسم خښته۔چې نقاشي پرې شوې وي۔او دشیشو نرۍ ټکړې په کښې لګولې شوې وي۔

**کاشي کاري**: – (ـــ کا+ري) (ف تر۔اس۔مو) د کاشي کار ښښنه کاري۔کاشي ګري۔کاشین ځیزونه جوړونه۔روغني یا ځلکېدونکې خښتې جوړونه ټائلونه جوړونه۔

**کاشین**: – (کا+شي+ن) (اس۔مذ۔ج۔ونه ان) ۱۔د اغړلو اوړو دکښښودو خاورین لوښي قلپۍ۔کلپۍ۔۲۔روغني لوښي ګلدار لوښي روغني رنګ واله خښته۔

**کاښی**: – (کا+خ+ش+ی) (اس۔مو) یو قسم سخت وابښهٔ دي۔چې اوبښ ئې هر ځومره ژوئي نهٔ نرمېږي۔

**کاظم**: – (کا+ظ+م) (اس صف مذ۔ج ـــ ان) ۱۔غصه وژونکې۔غصه برداشت کوونکې ۲۔(مع) د امام موسیٰ رضا (بن امام جعفر) صادق لقب دے۔۳۔د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي۔

**کاظم خان شیدا**: – (کا+ظ+م+خ+ا+ ن+شے+دا) د پښتو مشهور نازک خیاله شاعرد افضل خان خټک زوے د خوشحال خان خټک نمسے وۀ

**کاغ**: - (کا+غ) (ف۔اس۔مذ) یوتورنګې مارغهٔ چې اکثر د تالاؤنو او ډنډونو په خواکښې اوسي۔

**کاغ**: - (کا+غ) (اس۔صوت) د کارغه آواز۔کاغ کاغ،ټاغ ټاغ۔

**کاغ**: - (کا+غ) (صف مذ،مو۔ه) ۱۔هوښیار۔سیانه۔ځیرک چالاک۔تېر باسونکې ۲۔دوراندېش۔مختاط

**کاغ**: - (کا+غ) (اس۔ف۔مذ) ۱۔اور۔هور۔اتش۔۲۔قے۔اُلټي۔

**کاغان**: - (اس۔مو) (د خیبر پښتونخوا د هزارې په ضلع کښې یو ښکلے د سېل ځاے۔

**کاغذ**: - (کا+غ+ذ) (ع۔اس۔مذ۔ج ـــ ونه) ۱۔قرطاس۔چې پرې لیکل کېږي۔ ۲۔خط ۳۔رقعه

**کاغذ باد**: - (ـــ با+د) (ف تر۔اس۔مذ۔ج ـــ ونه) باډیوه۔ګوډۍ۔

**کاغذ تورول**: - ۱۔په کاغذ لیک کول۔۲۔ ډېر زیات لیکل کول۔تر دا چې سپین کاغذ پرې تور شي۔

**کاغذ لیکل**: - ۱۔خط لیکل۔چیټۍ لیکل۔رقعه لیکل ۲۔اشټام لیکل۔تمسک لیکل۔لوظ معاهده لیکل

**کاغذ لیکلے اخستل**: - شټام لیکلے اخستل۔پوخ سند اخېستل۔پخه اراده لیکلے اخېستل۔

کاغذ لیکلے تړنه واخله۔
د نتې زمانې یار دے ټګ به وینه

**د کاغذ طلاق**۔ (ـــ ط+ل+ا+ق ـــ) (عپ تر۔اس۔مذ۔ج ـــ ونه) طلاق نامه۔هغه کاغذ چې په کښې ښځې له د طلاق ورکول لیک شوي وي۔

**د کاغذ پرزه** (ـــ پ+ر+ز) عپ۔تر۔اس۔مو۔ج ـــ زي) ۱۔د کاغذ یوه (وړه شان) ټکړه ۲۔مجازاً بې کاره ځیز۔دکاغذ هغه ټکړه چې هېڅ قیمت یا فائده نهٔ لري۔

**د کاغذ په شان**: - ۱۔نرے ځیز۔چې غټ والے نهٔ لري ۲۔ډنګر۔کمزور۔باریک

**د کاغذ کشتۍ** (ــــ کي+ش+ت+ی) (عپ تر۔اس۔مو) ۱۔د کاغذ نه جوړه شوې کشتۍ چې ماشومان ورسره لوبې کوي۔ ۲۔نا پائداره ځیز۔بې اعتباره ځیز۔

**د کاغذ نکاح**: – (عپ تر۔اس۔مذ) نکاح نامه۔هغه شرائط نامه چې د نکاح په وخت لیکلے شي۔

**کاغذي**: – (کا+غ+ذي) (عف تر۔صف) ۱۔د کاغذ نه جوړ شوے ۲۔کاغذ جوړونکے او خرڅونکے ۳۔د نرۍ پوستکي واله ځیز۔

**کاغذي بادام** (ـــ با+دا+م) (عف تر۔اس۔جم) د بادامو یوقسم دے۔چې پوستکے ئې ډېر نازک او نرم وي۔

**کاغذي شونډې** (ـــ شو+ن+ډې) (فپ تر۔اس۔ج) د کاغذ په شان شونډې مجازاً نرۍ شونډې د معصومو شونډو په صفت کښې وئیلې شي۔

په چیلم چا عادت کړې یاره
ترکاغذي شونډو دې خېژي شنهٔ دودونه

**کاغذي نوټ**: - (انګ۔تر۔اس مذ، ج۔ونه) ۱۔د کاغذ سکه۔(د سرو سپینو وغیره په مقابله کښې) کرنسي نوټ۔۲۔دکاغذ یاداشت۔په کاغذ یادګېرنه۔

**کاغل**: - (کا+غ+ل) (اس۔مذ۔ج۔ونه) فهرست۔لسټ

**کاغه**: - (کا+غ) (اس۔مو۔ج ـــ غې) ۱۔د کارغهٔ مونث دے ۲۔یو قسم کارغهٔ چې د اصل نه تور وي۔وائي چې حلال دے۔۳۔هوښیاره۔ځیرکه۔چالاکه۔

**کاغی**: - (کا+غ+ی) (اس۔مو) وړوکې کاغه۔وړوکې کارغهٔ۔زاغچه۔

**کاف**: – (کا+ف) (اس۔مذ۔ج ـــ ونه) دمختلفو ژبو د دهجائي تورو حروف تهجي) یو تورے (د ے)

**کافر**: - (کا+ف+ر) (اس۔مو) د پخوانۍ زمانې نه پاتې شوے یوقوم چې د چترال په خواکښې په یوه خاصه علاقه کښې اوسي۔چې ورته کافرستان وائي۔دا خلک بت پرست دي او د پخوانۍ زمانې خپل خاص دور دستور لري ډېر خلک د تماشې د سېل په طور دد دوي علاقې له ورځي د دې خلکو څهٔ برخه دافغانسان په حدودو کښې هم اوسېږي خو هغوي اوس مسلمانان شوي دي او د علاقې نوم ئې هم اوس د کافرستان په ځاے نورستان دے۔

**کافر**: - (کا+ف+ر) (ع۔اس صفت مذ،ج ـــ ان) ۱۔منکر۔خصوصا د خداے پاک منکر۔هغه چې خداے پاک نهٔ مني۔۲۔(شعر) معشوقه۔محبوب ۳۔(صفت) دکمال۔ډېر زیات اعلی۔دغضب۔لکه: کافر جومات دے:

**حربي کافر**: – (ح+ر+بي ـــ) (عف تر۔اس۔مذ) هغه کافر خلک،چې دکومو له کبله د دین (اسلام) په کارونو کښې حرج او اړیکه پېدا کېږي ځکه دوي سره جهاد واجب دے۔

**ذمي کافر**: – (ذ+م+مي ـــ) (صف تر۔اس۔مذ) هغه کافر کوم چې د اسلامي سلطنت دننه اوسي او جزیه ادا کوي۔دوي سره د عام مسلمانانو په شان سلوک کولے شي۔

**کتابي کافر**: – (ک+تا+بي ـــ) (عف تر۔اس مذ) هغه کافر کوم چې د پخواني پیغمبر او د هغهٔ د کتاب منونکي دي خو اسلام نهٔ مني اهل کتاب۔

**کافرانه**: – (کا+ف+را+ن) (صف تر۔صف) دکافرو خلکو په انداز۔د کافرانو خلکو په ډول۔د کافر سړي په انداز۔د کافرانو غوندې۔

**کافرستان**: – (کا+ف+ر+ش+تا+ن) (اس مو) د چترال په خواکښې یوه علاقه چې پخواني کافر په کښې اوسي د دې کافر خلکو په وجه دغې ملک ته کافرستان وئیلې شي۔

**کافر کوټ**: – (اس۔مو) د ډېره اسمعیل خان په ضلع کښې یو پخوانے کلے دے۔ دپخوانۍ زمانې څهٔ اثار لري۔

**کافره**: – (کا+ف+ر) (عپ تر۔اس۔مو۔ج۔رې انې) د کافر تانیث دے۔

**كافري**: – (كا+ف+ري) (عپ تر ـ اس ـ مو) ۱ـ كفر: د دين نه جاروتنه ـ لكه: پښتنو نيمه كافري ده (متل) ۲ـ د كافرو خلكو سره متعلق ـ كافر خلكو ته منسوب

**كافور**: – (كا+فو+ر) (ع ـ اس ـ جم) ۱ـ يوه ډېره د تېز بوي واله سپين رنګې ماده ـ چې د صحرائي (كافور) د ونې نه اووزي. ۲ـ د كافور ونه ـ چې عموماً په چين او د خطايه ملك كښې پيدا كېږي ـ دا ډېره لوړه او لوے ګېر واله وي ـ (وائي چې د زړې ونې د شپې شغلې خېژي ـ خو سوځول نۀ كوي ـ دا ډېر جراثيم كش دے ـ ځكه د پخوا راسې ئې خلك په وړينوجامو كښې كېږدي چې چينجيچ ئې ونه وهي ـ خو د خوشبويۍ په وجه په هغه مساله كښې دا كافور خاص طور د مړو په كفن كښې اچولے شي. ۳ـ د نارينه په نومو نوكښې راځي. سپينو ويښتو ته كافور وائي.

**كافور خوړل**: - شهوت قطع كول. (كافور ډېر يخ ياد ېږي ځكه ددې په خوراك دنارين توب قوت كمېږي ـ ځان نامرد كول.

**كافوري**: – (كا+فو+ري) (عف تر ـ صف) ۱ـ هغه چې كافور سره تعلق لري ـ كافور ته منسوب. ۲ـ سپين رنګ واله ـ سپين رنګے.

**كافوري رنګ**: – (ـــ ر+ن+ګ) (عف +اس+مذ) يو خاص رنګ چې زېړېخن وي ـ دا رنګ د زعفران ـ د خاورې (پټكرې) وغېره نه جوړولے شي.

**كافوري شمع**: – (ـــ ش+م+ع) (عپ تر ـ اس ـ مو ج ـــ شمعې) يوقسم شمع چې كافور په كښې ګډولے شي ـ ددې رڼا هم تېزه وي او هم صفا.

**كافوري مرهم**: – (ـــ م+ر+ه+م)

**كافوري ملهم**: – (ـــ م+ل+ه +م) (عپ تر ـ اس ـ جم) يو قسم ملهم ـ چې ډېر يخ وي په دې كښې اهم جز كافور وي

**كافه**: – (كا+ف) (ع ـ صف) ټول ـ همه ـ ګرد ـ درست

**كافه انام**: – (ـــا +نا+م) (عف تر ـ اس ـ ج) ټول خلك ـ درست وګړي.

**كافي**: – (كا+في) (ع ـ صف) ۱ـ كفايت كوونكے ـ ډېر ـ بس بسيا ـ د ضرورت سره سم. ۲ـ د الله پاك يو صفاتي نوم. ۳ـ دنارينهؤ ډېرو نومونو كښې ځائېږي.

**كافي شافي**: – (ـــ شا+في) عپ ـ تر ـ صف) ډېر ـ بس ـ د ضرورت او حاجت پوره كوونكے

**كافي**: – (۲) :- (كا+في) (رنك ـ اس ـ مو) قهوه. (وائي چې دا په اول ځل د افريقې د كافه نومې ملك په ځنګلونو كښې موندلې شوې وه ځكه نوم ئې كافي وګرځېد.

**كافي**: – (۳) :- (كا+في) (اس ـ مو ـ ج ـ انې) ۱ـ يو خاص قسم سندره ـ چې اكثر بزرګانو وئيلې ده. ۲ـ په ۳۲ راګنيو كښې ديوې راګني نوم.

**كافي هاوس**: – (ـــ ها+ؤ+س) (انګ تر ـ اس ـ مذ) هغه ځاے چېرته چې تياره كافي خرڅېږي ـ قهوه خانه

**كافيه**: – (كا+فى+ي) (اس ـ مع) ۱ـ دعربۍ د علم نحو مشهور كتاب. ۲ـ د پښتو د نحو كتاب ـ چې شمس العماء رضواني ليكلے وۀ. ۳ـ دغزل اهم صنف.

**كاك**: – (كا+ك) (ف ـ اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) ۱ـ يو قسم غوړه ډوډۍ (چې په وچو اوړو كښې د غوړو په ګډولو پخولې شي) بسكټ ۲ـ د ډوډۍ هغه ككوړے چې د خواجه قطب الدين بختيار خوراك وو ـ په دغه وجه ورته بختيار كاكي وائي ـ او نورو خلكو له به ئې وركوله. ۳ـ لويه غټه ډوډۍ چې په (هوار) كانې پخولے شي. ۴ـ غټه خوږه ډوډۍ

**كاك**: – (كا+ك) (ف) ۱ـ ځوانمرد. ۲ـ مانده ډنګر حېوان يا بني ادم ۳ـ وچه كړې غوښه ۴ـ بې سليقې بې ډېه ـ ناشائسته خرډګ بني ادم ۴ـ سپوږمۍ (دڅوار لسمې) ۵ـ تش ـ خالي ـ ډډ

**كاك**: –(كا+ك) (و ـ كارك)

**كاكا**: – (كا+كا) (اس ـ مذ ـ ج ـ ګان) ۱ـ ترۀ ته د عزت دپاره وائي ترۀ ـ چاچا ـ اكا ۲ـ هر مشر سړي ته د عزت د پاره وائي ـ (خصوصاً هغه سړے چې ناپېژند ګلويه وي) ۳ـ مشر ـ بوډا سړے ۴ـ پلار

**كاكاجي**: – (ـــ جي) (پ تر ـ اس ـ مذ) د كاكا په معنوكښې راځي چې ورسره د زيات عزت او اكرام د پاره "جي" زياتولے شي. ګران كاكا ـ عزتمند كاكا ـ خوږ كاكا. ګل كاكا. سپين كاكا.

**كاكا خېل**: – (كا+كا+خ+ل) (اس مع) دحسن زئيو ځانګه ده. (حسن زي د عيسىٰ زي) يوسفزي دي.

**كاكا خېل**: – (كا+كا+خ+ل) (اس ـ مع) د خټكو ځانګه ده ـ د كاكا صاحب اولاد ته وائي

**كاكا زئ**: – (كا+كا+ز+ئ) (اس ـ مع) د ماماندو ځانګه ده ـ تركاڼي دي.

**كاك پټ**: – (كا+ك+پ+ټ) (انګ تر ـ اس ـ مذ) په هوائي جهاز كښې د جهاز د چلوونكو كوټګۍ ـ د پائلټ كمره.

**كاكړ**: – (كا+ك+ړ) (اس ـ مو) جمع كاكړان ـ د پښتنو يوه لويه قبيله ده ـ چې د غورغشت اولاد ګڼلے شي ـ دا قبيله د ژوب نه نيولې تر سيوۍ پورې په كثرت سره اباده ده. پېښور كښې هم ځينو سيمو كښې دوي شته. غورغوشت د قېس دريم زوے ګڼلے شي ـ خو تاريخي لحاظ سره دا درسته نۀ ده ـ د غورغشت زوے دانے نومېدۀ او د داني زوے كاك يا كاكړ نومېدۀ دغه كاك كاكړ د بلوچستان د سمې د كاكړو د قبيلې نېكۀ ګڼلے شي د كاكړو اووۀ قبيلې دي)

**كاكړستان**: – (كا+ك+ړس+تا+ن) (اس ـ مو) هغه سيمه يا علاقه چېرته چې د كاكړو اولس اوسي. (د ژوب او د خواوشا سيمه)

**كاكړي**: – (كا+ك+ړي) (اس ـ صف) ۱ـ د كاكړو خلكو سره متعلق ـ كاكړو ته منسوب ـ لكه كاكړي لهجه ۲ـ د كاكړو په علاقه كښې جوړېدونكے ۳ـ د كاكړو په علاقه كښې پېدا كېدونكے لكه كاكړۍ پسۀ

**كاكړۍ**: –(كا+ك+ړ+ۍ) (اس ـ مو) د كاكړو غاړې ـ سندرې

**كاكښه**: – (كا+ك+خَ+شَ) (فپ تر ـ اس ـ مو ـ ج ـ ې) ترنګې ـ د سپنسيو ياد مېزري هغه چارخانه غونډې لويه بوره چې په كښې وابښۀ يا بوس وړے شي ـ كورے ـ څرے ـ ګراڅه.

**كاكښي**: – (كا+ك+خي+شي) (فپ تر ـ اس ـ م) په ترنګښه كښې وابښۀ (يابوس) ډكونه وړنه ـ د وښو يا بوس وړلو كار.

**كاكك**: – (كا+ك+ك) د "كاكا" اسم تصغير دے ـ د مينې دپاره استعمالېږي

**كاكل**: – (كا+ك+ل) (ف ـ اس ـ جم) څڼې د سر هغه وېښتۀ كوم چې د مخ دواړو اړخونو ته پراتۀ وي. ۲ـ اوربل ـ د څټوكي وېښتۀ ۳ـ پېچكے

**كاكل پيچان**: –(ـــ پې+چا+ن) (ف تر ـ اس ـ جم) كلګوتې څڼې تاو راتاو زلفې

**كاكنج**: – (كا+ك+ن+ج) (ق+اس+جم) غدبنت ـ ارزن د باجرې په شان دانې، يوه غله ـ دوائي هم ده.

**كاكو**: – (كا+كو) (اس ـ مذ) د كاكا بدل شكل دے ـ چې د مينې او احترام مفهوم لري.

**كاكوتي**: – (كا+كو+تي) (اس ـ جم) يو خوشبوداره بوټے چې خلك ئې اوم هم خوري ـ او وچ ئې كړي ـ او بيائې په مستوكښې اچوي.

**كاكوتے**: – (كا+كو+تے) (اس ـ مذ) وابښۀ دي ـ مېچن

**كاكوړه**: – (كا+كو+ړَ) (اس ـ مو ـ ج ـ ړې) د حنظل يا مرغونې يو قسم دے.

**كاكوړه**: – (كا+كو+ړَ) (صف ـ مو) ترټركۍ ـ توتله ـ اننبتې ژبه

**کاکوړه کېدل :** – ترټې کېدل ـ په خبرو کښې ژبه ښتل ـ

**کاکول :** – (کا+کو+ل) (اس ـ مو) په هزاره کښې یوځا ے ابېټ اباد ته نزدې د ےـ د فوځي افسرانو د تربیت لو ے مرکز د ے ـ

**کاکونډے :** – (کا+کو+ن+ډ ے) (وـ کارکونډ ے) یو خور وور بوټے چې ازغنې داني لري ـ

**کـاکي :** – (کا+کي) (ف ـ صف) ۱ـ کـاک سره تعلق لرونکےـ (وـ کـاک) ۲ـ د حضرت قطب الدین بختیار لقب (و ـ ک)

**کاکي :** – (کا + کي) (اس ـ مو ـ ج ـ ګانې) ۱ـ د کاکا تانیث د ے ۲ـ احتراماً هرې بوډۍ یامشرې ښځې ته دخطاب په وخت وئیلے شي ـ

**کاکي :** – (کا+کي) (اس ـ مو) چاچي

**کاکیچ :** – (کا+کي+چ) (اس ـ مذ) د هلکانو د یوې لوبې نوم د ے ککچے، ګلي ډنډه ـ

**کاګل :** – (کا+ګ+ل) (ف ترـ اس ـ مذ) هغه نرمه ختېه چې په کښې بوس ګډ شوي وي (چې دلیو دپاره پکارولے شي)

**کال :** – (کا+ل) (اس ـ مذ ـ ج ــ ونه (کلونه) ۱ـ د دولسومیاشتو وخت ـ سال

**پروسه کال :** – (پ+رو+س ــ) (پ ترـ اس ـ مذ) دپروسږ کال مخفف د ے تېر شو ے کال ـ

**سخ کال :** – س+خ ــ) (وــ سږکال)

**سخ کال :** – (س+ګ+ژ ــ) (پ ترـ اس ـ مذ) اوسنے کال ـ کوم کال چې لګیا د ے تېرېږي روان کال

**شمسي کـال :** – (ش+م+سي ــ ف ب تر ـ اس ـ مذ ـ ج ــ ونه) هغه کـال چې حساب ئې د نمرسره تړلے وي ـ په دې کـال کښې درې سوه اوپینځه شپېتۀ ورځې وي ـ (د قمري کال په مقابله کښې)

**قمري کال :** – (ق+م+ري ــ) (ف پ تر ـ اس مذ) هغه کـال چې دمیاشتو حساب لري ـ میاشت د سپوږمۍ سره تړلے وي ـ د دې کـال درې سوه او پینځه پنځوس ورځې وي (د شمسي کـال په مقابله کښې) لس دولس ورځې کم وي)

**لاوړم کال :** – (لد+و+ړ+م ــ) (پ ترـ اس ـ مذ) د وړم کال نه مخکښې وړاندې تېرشو ے کال ـ د وړم کال نه مخکښې کال

**مالیاتي کـال :** – (ما+ل+یا+تي ــ) (ف پ ترـ اس ـ مذ) د مـالي معـاملاتو د پـاره مقرر شو ے کال ـ دا ېېل ېېل ملک او حکومت ځان لـه پـه خپلـه ټاکي ـ پـه پاکستان کښې دا کال پېرنګیانو مقرر کړ ے ؤـ چې په ۳۰ جون ختمېږي ـ

**وړم کال :** – (و+ړ+م ــ) (ب ترـ اس ـ مذ) پروسږکال، وړاندې تېر شو ے کال ـ

**هجري کال :** – (ه+ج+ري ــ) (ع پ تر ـ اس ـ مذ) هغه سن چې د حضور پاک ص دهجرت نه شورو کېږي ـ

**کال :** – (کا+ل) (ف ـ اس ـ صف لو ـ ه) کچه مېوه ـ کوک

**کال :** – (کا+ل) (اس صف) ۱ـ کږلېچ ـ پېچ وخم ۲ـ د سېلاب لاړ

**کال :** – (کا+ل) (اس ـ مذ ـ ج کلونه) بـاغ بـارۍ د ځناورو ـ ښاروو د نقصان نه بچ ساتلو دپاره چې کوم ازغن تار یا شپول چاپیره کولے شي ـ (باړ)

**کالا :** – (کا+لا) (ف ـ اس ـ مذ) کالي ـ دکورسامان ـ متاع اسباب ـ جامې وغېره ـ

**کالا بـاغ :** – (کا+لا+بـا+غ) (اس ـ مـو) د اباسین پـه غـاړه د یوښـهر کلي او علاقې نوم د ے ـ

**کالانعام :** - (ک+ل+ا+ن+عا+م) (ع ترـ صف) دا د ک (تشبیه) او د انعـام (څاروي) څخه جوړشو ے د ے دځاروو په شان ـ مجازاً کم عقل ساده عام اولس ـ

**کالبد :** – (کا+ل+ب+د) (اس ـ مذ ـ ج ــ ونه) وــ کالبوت

**کالبوت :** – (کا+ل+بو+ت) (اس ـ مذ ـ ج ــ ونه) ۱ـ قالب ـ د لرګي قالب چې د بلاکونو، پېږو خښتو وغېره د پاره پکارېږي ۲ـ هغه لوښے په کوم چې کلالان په کارګاه کښې کچه لوښې جوړوي ـ کالبوتۍ ۳ـ د بني ادم وجود د روح د پـاره یوکـالبوت پـه شـان د ے ـ د لرګي نه جـوړ د انسـان د قـد هومره جوړه شوې بکسه چې مړے پکښې اېښود ے شي ـ

**تش کالبوت ودرېدل :** – وارخطا وېرېدلے اودرېدل ـ

**کالبوتی :** – (کا+ل+بو+ت+ۍ) (اس ـ مو) ۱ـ د کلالانو هغه تالے چې په کارګاه ئې کښېږدي او په دې کښې کچه لوښې سازوي ـ ۲ـ پخوا بـه پـه دې پلن تالي یا لوښي کښې په واده بنادۍ کښې وریژې (وربچې) خوړے شوې ـ او د کلالانو دا ذمه واري وه چې په واده یا غم کښې څومره کالبوتۍ پکارېږي هغه مهیا کړي ـ اوس دارواج ورک شو ے د ے ـ

**کالتوس :** – (کا+ل+تو+س) (وــ کارتوس) د ټوپک ګولۍ

**کـالج :** – (کـا+ل+ج) (انګ اس ـ مذ ـ ج ــ ونـه) ۱ د اعلـی تعلـیم اداره ښوونځے هغه تعلیمي اداره چې د لسم جماعت نه بره تر څوالسم (بی ـ ا ے) پورې په کښې زده کړه کېږي ۲ـ پېشه ورانه درس ګاه ـ دارالعلوم

**کال خوا :** – (کا+ل+خ+وا) (صف ـ مذ)اختیار مند ـ مختار ـ واکمن خواخوږ ے، خېرخواه، نېک خواه ـ

**کالخواهي :** – (کا+ل+خ+وا+هي)

**کـالخوائي :** – (ــــ ئي) : (پ تر ـ اس ـ مو) ۱ـ نېک خواهي ـ خواخوږي ـ ۲ـ اختیار ـ خوښه ۳ـ طاقت ـ قوت

**کـالخوے :** – (کا+ل+خو+ئے) (اس ـ ، مذ ، ج ــ ي) هغه کس چې بل څوک د خپل کار دپاره مقرر کړي ـ

**کالدانه :** – (کا+ل+دا+نَ) (اس ـ مو) دیوې بیمارۍ نوم ـ سال دانه ـ یوه خطرناکه دانه

**کالر :** – (کا+ل+ر) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ــ ونه) د قمیص دغاړې د پټۍ دپاسه اودربدلې خاص قسم پټۍ ـ کالر ـ د کوټ هغه رابرغه شوې برخه چې د غاړې په خوا کښې جوړه شوي وي ـ رابرغه شونۍ کلکه غـاړه ـ غـاړکۍ ـ مرغۍ (ترکۍ)

**کالک :** – (کا+ل+ک) (اس ـ مذ) غوزه ـ کالکه ـ تپوسے (مروت) د مالوچو غوزه ـ د ښنبې پلے

**کالکنډۍ :** – (کا+ل+ک+ن+ډ+ۍ) (پ ـ اس ـ مو) یوازغن بوټے چې اغزنې دانې ئې پینو کښې ننوځي ـ

**کالکنډے :** – (کا+ل+ک+ن+ډ ے) (وــ کالکونډۍ)

**کالکوټي :** – (کا+ل+کو+ټي) (وــ کاکوټي) ـ وړوکي ته دمینې نه وائي ـ

**کالکوچ :** – (کا+ل+کو+چ) اس صف مذ ، مو ــ ه) ۱ـ تـاو راتـاو پچیده ۲ـ مکر ـ فرېب ـ درغلي

**کالکوچکه :** – (کـا+ل+کو+چ+ک) (اس ـ مـو ـ ج ــ کې) ۱ـ کـالکوچ والـه ـ تـاو راتاو پېچیده ۲ـ دوکه مـاره ـ مکـاره ـ ټګ جنه ـ ۳ـ پـه یوکـار کښـې خنډ پیدا کول ـ

**کـالکوچن :** – (کـا+ل+کو+چ+ن) (صف ـ مذ ،مو ــ ه) ۱ـ تـاو راتـاو ـ پېچیـده ۲ـ دوکه مار ـ ټګ ـ مکار

**کالکونډي :** – (کـا+ل+کو+ن+ډ+ۍ) (اس ـ مـو) کچه ختکے ـ خربوزه چې لاپخه شوې نۀ وي دځنګلي ختکو یو قسم

**کالکه :** – (کا+ل+کَ) (اس ـ مو ـ ج ـ کچې) غوزه ـ دپنبې غوټۍ (چې لاسپړدي شوې نۀ وي ـ د کوکنار د قاشقاشو د پوست غوټۍ

**کـالم :** – (کا+ل+م) (انګ ـ اس ـ مذ ـ ج ــ ونه) ۱ـ ستن ـ پایه ۲ـ د کتـاب یـا د اخبـار د مـخ تقسیم چې د بـره نـه تـر ښکته پـورې پـه یـو څـو برخوکښې وېشلے شو ے وي ـ هره یوه برخه لکه د ستن ولاړه ښکاري ـ

**کـالم نویس :** – (ــ ن+وي+س) (انګ ف ترـ اس ـ مذ ـ ج ـ ان)د اخبار د کـالم

دپاره مضمونونه لیکونکے۔د اخبار د پاره په مختلفو موضوعاتو لیک کوونکے۔کالم لیکونکے

**کالنجر :** – (کا+ل+ن+ج+ر) (اس ۔مو) د هند یوه مشهوره علاقه ۔پښتون شهنشاه شېرشاه سوري ۔ددغې علاقې په محاصره کښې شهید شوے ؤ خو د مرګ نه وړومبے پرې د برې زیرے وشهٔ نو د الله شکر ئې ادا کړهٔ۔

**کالنی :** – (کا+ل+ن+ئی) (اس۔مو۔ظر) ۱۔د کالنے تانیث دے ۲۔سالنامه

**کالنے :** – (کا+ل+نے) (اس۔ظر) ۱۔کال سره۔متعلق کال ته منسوب ۲۔د کال

**کال و سر :** – (کا+لو+س+ر) (ب تر ۔اس ظر) درست کال ۔ټول کال ۔د کال دولس میاشتې۔

**کالوني :** – (کا+لو+ني) (انګ۔اس۔مؤ) ۱۔نو ابادي۔د کوم ملک د اختیار واک ترلاندې ملک ۔ ۲۔نوې ابادي هغه کورونه یا ابادي چې نوې په عمل کښې راغلې وي۔

**کالهٔ :** – (کا+لهٔ) (اسم۔مذ) کور۔د کور عمارت۔خونه (عموماً مغېره تورو سره راځي لکه د کالهٔ اسباب په کالهٔ کښې۔

**کالے :** – (کا+لے) (اس۔مذ۔ج۔کالي) جامه۔پوشاک

**کالي :** – (کا+لي) (اس ۔مو۔ج) د کالے جمع ده ۔ جامې ۔پوشاک ۔اغوستنې ۔ سامان،وسله،کالي ۔زېور د کاریګر د کار اوزار دکسب ګیرۍ سامان۔

**کالي مالي :** – (ـــما+لي) (پ تر۔اس۔ج) دې کښې ,,مالي،، تابع مهمل دے۔ او دلته د وغېره معنٰي ورکوي ۔یعني کالي وغېره کالي او نور داسې څیزونه۔

**کالبو :** – (کا+ل+لی+ب+ر) (انګ ۔اس ۔مذ) ۱۔د کوم سوري واله څیزد قطر اندازه۔ ۲۔د فکر صلاحیت ۔لیاقت ظرفیت۔

**کالیزه :** – (کا+لی+زَ) (اس ۔مو۔ج۔زې) سال ګره ۔دکال دستوره ۔هغه کلیزه پروګرام چې د اهمې واقعې یاد چا په یاد کښې نمانځلې شي۔

**د زېږېدنې کالیزه** (د+زې+ګې+د+نې ـــ) (ب تر ۔اس ۔مو۔ج ــ زې) دزېږېدنې د ورځې دستوره۔د زېږېدنې نېټه د کال په پوره کېدو۔

**کاما :** – (کـا+مَ) (د ـــ کامــه) د انګریـزۍ ,,واو،، چـې د اودریـدنې د پـاره استعمالېږي

**کامبوړے :** – (کا +م+بو+ړے) (اس۔مو) ۱۔د جوارو یا دوښو وچې ځانګې بوټي وغېره چې د بلولو (سوځولو) د پاره پکار راځي ۔ ۲۔مجازاً بې کاره او ادنٰي څیز۔

**کاش کامبوړے ۔** (کا+ش ـــ) (پ تر۔اس۔مو) ۱۔خشاک او وچ واښهٔ چې د اور د بلولو د پاره پکارولے شي۔ ۲۔مجازاً بېکاره، حقیر، سپک څیز

**کامبیله :** – (کا+م+بے+ل) (اس۔مو۔ج۔بې) ۱۔دیوې ونې او دهغې تخم چې په دارو ګانو کښې استعمالېږي ۔ ۲۔دحلالې هغه مخصوص ځاے چې په حکومتي توګه د قصابانو د پاره مقرر شوے وي۔

**کامچه :** – (کا+م+چ) (اس ۔مو۔ج ــ چې) خچه ګوته ۔د لاس وړه ګته ۔خمچه ګوته۔قچه ګوته۔کچه ګوته۔

**کامخور :** – (کا+م+خو+ر) (اس۔مذ) یو قسم غټ کب (مهے) دے چې نور واړهٔ کبان خوري۔

**کامدار :** – (کا+م+دا+ر) (صف ۔مذ ، موـــه) هغه څیز چې د سرو سپینو زرو او رېښمو کار پرې شوے وي او رنګ رنګ نقشونه لري۔

**کامران :** – (کا+م+را+ن) (ف تر۔صف مذ ،موـــه) خوش نصیبے ۔بختور ۔اقبال واله۔کامیاب۔

**کامران کېدل :** – کامیابېدل۔بریالے کېدل، مقصود ته رسېدل۔

**کامراني :** – (کا+م+را+ني) (ف تر ۔اس ۔مو) خوش بختي ۔بختاوري ۔اقبال ۔ اقبال مندي۔

**کامراني حاصلول :** –خوش بختي موندل

کامراني بې له تا هېڅ حاصله نهٔ کړه

ډېر ئې وکړهٔ پــه دا طمع ناکـامــونــه (حمید)

**کامرس :** – (کا+م+ر+س) (انګ۔اس۔مذ)تجارت۔سوداګري۔

**کامروا :** – (کا+م+ر+وا) (ف۔مصف۔مذ ،) کامیاب۔بامراد ۔

**کامره :** – (کا+م+ر) (و۔کېمره) کېمره د تصویر اخستو الـه ۔اتک سره مشهرره بنهریه چې د هوائي جهازونو مرمت په کښې کېږي۔

**کامګار :** – (کا+م+ګا+ر) (ف تر ۔صف۔مذ ، موـــه) ۱۔مقصد مند۔خوش نصیبے۔ اقبالمند۔بختور ۔کامران ۔کامیاب ۔ ۲۔د خټکو د کورنۍ یو کلاسکي شاعر۔

**کامګاري :** – (کا+م+ګا+ري) (ف تر ۔اس ۔مو) مقصد مندي ۔اقبال مندي ۔ خوش نصیبي۔بختاوري۔

**کامل :** – (کا+م+ل) (ع۔اس صف،مذ ،ج ۔ان) ۱۔پوره۔تمامي۔ټول۔جمله۔ثابت کلهم۔بشپړ ۔ ۲۔کمال ته رسېدلے۔ماهر۔د فن استاذ ۔ ۳۔عارف۔خدا ے ته رسېدلے ۔ ۴۔ډېر لوے عالم۔عالم فاضل ۵۔پوخ۔مضبوط۔کلک

**کامل عیار :** – (ـــ ع+ي+یا+ر) (عف تر۔اس۔مذ) د بشپړ معیار۔دپوره معیار۔ خالص۔کره۔سره۔

**کامل والے :** – (ـــوا+لے)

**کامل توب :** – (ـــتو+ب) پوره والے۔بشپړوالے۔مکمل توب۔

**بحر کامل :** – (ب+ح+ر ـــ) (عف تر۔اس۔مذ) په عروض کښې د یو بحرنوم دے

**کاملول :** – (کـا+م+ل+ؤ+ل) (مص) لـوړه کـول ۔بشـپړکول ۔مکمـل کـول ۔ تکمیل ته رسېدل۔

**کامله :** – (کا+م+ل) (عپ تر۔مو) د کامل تانیث دے۔

**قدرت کامله :** – (ق+د+ر+ت ـــ) (عف تر۔اس۔مو) کامل قدرت۔هغه قدرت چې څهٔ کمے په کښې نهٔ وي۔مکمل طاقت۔

**کاملیت :** – (کا+م+لی+ي+ت) (ع۔اس۔مذ) پوره کېدنه۔بشپړ حالت۔مکمل کېدنه۔تکمیل پوره والے۔مکملتیا ۔بشپړتیا۔

**کاملېدل :** – (کا+م+لې+د+ل) (مص) مکمل کېدل۔پوره کېدل۔پوره حالت ته رسیدل۔بشپړېدل۔

**کامن :** – (کا+م+ن) (انګ۔صف) عام۔عمومي۔ټولو سره تړلے۔

**کـامن روم :** – (ـــرو+م) (انګ ۔اس ۔مذ) پـه کـالجونو وغېره کښـې د طالب علمانو د وخت تېرې ، د ګپ شپ کول لویه کوټه۔

**کامن ویلتهه :** – (ـــو+ل+ت) (انګ تر ۔اس۔مو) داسې حکومت چې واک اختیار ئې د عام اولس په لاس کښې وي۔ازاد حکومتونه۔

**کامه :** – (کا+مَ) (اس ۔مع) ۱۔په ننګرهار (افغانستان) کښې د یو ځاے (لوے کلي) نوم دے۔

**کامه وال :** – (ـــوا+ل) د کامې کلي اوسېدونکے۔

**کامیاب :** – (کا+م+یا+ب) (ف تر ۔صف ، مذ ، موـــه) مقصد موندونکے ۔مقصد مند۔کامران۔مراد موندونکے۔بریالے۔ غالب۔

**کامیاب :** – په کامیابه ډول : په کامیابه طریقه۔

**کامیابه :** – (کا+م+یا+بَ) (عپ تر ۔صف) ۱۔د کامیاب تانیث دے ۔ ۲۔د کامیــاب بــدل شــکل دےــ نـورو الفـاظو سـره د کامیـاب پـه ځـاے استعمالېږي۔

**کامیابه کېدل :** – برے موندل۔مقصد ته رسېدل۔

**کامیابي :** – (کا+م+یا+بي) (ت تر۔اس ۔مو) مقصد مندي مراد مندي ۔برے موندنه۔برے۔

**کامیابي کېدل :** - کامیابي حاصلول۔ په کوم مقصد کښې بریالے کېدل۔

**کامبډي :** - (کا+مي+ډي) (انگ ۔اس ۔مو) هغه ډرامه وغېره چې په کښې دخندا مکالمې یا خبرې وي۔د مسخرو ډرامه۔

**کامېډین :** - (کا+مي+ډي+ي+ن) (انگ تر ۔اس ۔مذ) هغه سړے چې دمسخرگۍ کردار ادا کوي ۔په ډرامه کښې د مسخرې پارټ ادا کوونکے۔مسخره کومېډین۔ټوکمار۔چارلي۔ټوکي۔ مسټر بین۔

**کان :** - (کا+ن) (ف۔اس۔مذ ،ج ـــونه) درنگ۔معدن۔د نل۔ ۱۔(معدنیاتو) وغېره په زمکه یا غر کښې ښخه پټه خزانه چې په کښستلو ترېنه فلزونه سرۀ زر۔سپین زر۔تانبه یا گېس، تیل، کوئله وغېره راوستے شي د اس په مرۍ دانه راختل۔خاندان پېړۍ ۲۔منبع چینه۔لکه۔د وفا کان

**کان کن :** - (ـــ+ک+ن) (ف تر۔اس صف۔مذ ،ج۔ان)۱۔د درنگ د کنستلو کار کوونکے۔۲۔(شعر) مجازاً فرهاد ته وئیلے شي۔چا چې د اوبو راایستلو د پاره غر سورے کړے وۀ۔کوهکن۔

**کان کني :** - (ـــک+ني) د درنگو د کنستلو کار۔

**کان ملاحت :** - (ـــم+ل+ح+ت) (عف تر ۔اس) په شعرونو کښې د سکښې معشوقې د ښکلاپه طور وئیلے شي۔ سکښ ښائست۔

**د زرو کان :** - (د+ز+روـــ) (فپ تر ۔اس۔مذ ، ج۔ونه) ۱۔د سرو زرو درنگ۔ ۲۔هغه کار یا سړے چې ډېره منافع یا فائده ترې حاصلېږي

**کان په کان :** - (ـــ+پ+کا+ن) پشت په پشت۔پېړۍ په پېړۍ

تــــوره برخـــــه د خوشـــحال ده
کـــان پـــه کـــان ، خلـــک خبتـــر

**کانا :** - (کا+نا) (صف۔مذ ،ج ـ کان)کم عقل۔احمق۔ناپوهه۔که

**کناړا :** - (کا+نا+ړا)

**کاناړا :** - (کا+نا+ړا) (وـــ کېنېړا)

**کناري :** - (کا+نا+ي) (اس۔مع) د خبرېږي نوم۔د کناري زیړه بلبله

**کانال :** - (کا+نا+ل) (وـ کېنال) لوے نهر

**د سوېز کانال :** - (د+س+وي+زـــ) د سوېز نهر ۔نهر سوېز۔چې په مصر کښې دے۔او بحر روم او بحیره قلزم سره یو ځاے کوي۔

**کانټور :** - (کا+ن+تو+ر) (انگ تر۔اس) خاکه۔د یو تصویر په شکل د یو ملک لاندې باندې حدود یا کرښې مورگې۔

**کانټین :** - (کا+ن+تي+ن) (وـ کېنټین) د چایو ښنبلو خوراک خوړلو ځاے

**کانټ :** - (کا+ن+ټ) (شاذ) د کاټ په شکل دے ۔چې د کانټ چانټ (کاټ چهانټ) په مرکب کښې استعمالېږي۔قطع و برید۔کمے زیاتے۔

**کانټه :** - (کا+ن+ټً) (از ۔اس ۔مو ،ج ـــټې) د فولادو وړه درې غاښې۔ چې د مغرب خلک ورسره خوراک کوي ۔دې سره بل ضروري ځیز وړه خاص قسم چاړۀ هم استعمالېږي۔

**کانټار :** - (کا+ن+ټا+ر) (اس ۔مذ ،ج ـــونه) ۱ـ زیړ رنگې غټه چیندخه ۔ چنگښه ۲۔ کټه بوټک ۔۳۔هغه اوږده جارو چې د نرو تیلونه جوړۀ لے شي

**کانټاره :** - (کا+ن+ټا+رً) (اس۔مو ،ج ـــرې) لوکے چیندخ۔ختکښ ، خوټ کانښ

**کانټرېکټ :** - (کا+ن+ټ+ر+ے+ک+ټ)

**کنټرېکټ :** - (ک+ن ــــــ) (انگ۔اس۔مذ) ۱۔معاهده۔ترون ۲۔ټېکه

**کانټه ټپها :** - (کا+ن+ټ) (اس ۔مو۔ج ـــ ټي) ۱۔رېل گاډو د ټېشنونو هغه اله ، دکومې په ور سره چې د راتلونکي گاډي د پاره خاص پاټلۍ سمولے شي ۔ چې گاډے د یوې پاټلۍ نه بلې پاټلۍ ته واوړي

**ــــ بدلول :** - دکانټې په مدد سره د رېل گاډي دپاره د پاټلۍ بدلول۔گاډے په بله پاټلۍ کول۔

**ــــ وهل :** - جارو وهل۔په کانټه ځاے جارو کول۔

**کانټي دار :** - (کا + ن + ټ + ي + دا+ر) (ارف تر ۔صف۔مذ)ازغي لرونکے۔هغې تار ته وئیلے شي په کوم کښې چې په غښتلو کښې ځاے په ځاے د ازغو په شان ځوکې راوتې وي۔د شپول وغېره دپاره پکارولے شي۔

**ــــــ واله** (ـــوا+ل) (ارپ تر ۔اس ۔مذ) د سټېشن هغه ملازم چې په کانټه کار کوي او د رېل گاډو دپاره د پاټلود بدلولو رابدلولو کار کوي۔

**کانټي :** - (کا+ن+ټي) (اس ۔مو) ۱۔دکتاب جلد ۲۔ دزین لرگینه برخه ۳ـ د تورې تېکے۔۴۔د گوډ سرې بغلي همسا۔ ۵۔د سړي کرۀ وړۀ یا د نر او ښځې کړۀ وړۀ

**کانجر :** - (کا+ن+ج+ر) (صف ۔مذ ،مو ـــــه) ۱ـ هغه سترگې چې سپین او تور ئې سره گډوډ شوي وي۔برگ سترگے۔۲۔چغر۔کاټے ۳ـ هغه سړے چې زر زر سترگې رېوي۔

کانجیز :- (کا+ن+ج+ن+ر)(اس ۔مذ۔ج ـــونه) هغه لوے شهتیر چې د ارټ د بتکو د پاسه پـروت وي پـه دې کښـې د ارټ د ډول د څـرخ لـرگے چکرخوري د مېنځ چورلېدونکے لرگے مجازاً ۲۔کوږ ووږ سړے۔

**کانډۍ :** - (کا+ن+د+ۍ) (اس۔مو) ۱۔کاشوغه۔کاشق ۲۔چمچه۔سیپۍ

**کاندي :** - (کا+ن+دي) (بـــ فعل) د غېر مستعمل مصدر کاندل نه فعل حال کوي۔

دوه زلفـې دې بــلا دي دعاشــق پــه زړۀ ارانــدي
واړه صـــفتونه ســـتا د زلفـــو ورتـــه کانـــدي

وکاندي = وکړي

**خداے څۀ چې کاندي :** - (پ جمله) څه چې کوي هغه خداے پاک کوي دا ټول د خداے پاک په اختیار کښې دي۔

**کانډے :** - (کا+ن+دے) (اس۔مذ ، ج۔ي) دغلې کندو د لرگي نه جوړ شوے کندو چې غله وغېره په کښې کښېښودے شي۔

**کانډیال :** - (کا+ن+د+یا+ل) (اس ۔مذ ، ج ــــونه) یو قسم مشهور بوټے ۔ برېوکۍ (ف۔بادپرک)

**کاندید :** - (کا+ن+دي+د) (فر۔اس۔مذ) (انگ : کین ډي+ډېټ)۔امېدوار ۔نامزد ۔کانډي ډېټ

**کاندیدول :** - (کا+ن+دي+د+ؤ+ل) (مص) امېدوار جوړول۔انتخاب دپاره خپل امېدوار نامزدکول کانډي ډېټ جوړول۔

**کانډال :** - (کا+ن+ډا+ل) (اس ۔مذ ،ج ـــونه) ۱ـ کنډول ۔لویه پیاله ۔لوے خاورین سفار یا سفال۔کنډولے۔ ۲۔مات خاورین لوښے

**کانډال :** - (کا+ن+ډا+ل) (اس ۔مو) دیو کلي علاقې نوم په متل کښې راغلے دے۔ (متل)

چې گرځې گرځې ځاے دې کانډال دے
چـې ځـې ځـې ځـې ابـازو لـه بـه راځـې

**کانډوله :** - (کا+ن+ډو+ل) (اس۔مو ،ج۔بې) یو غریئز بوټے دے۔چې د کچالو په شان جرړه لري۔چې خلک ئې خوري۔

**کانډیاتي :** - کا+ن+ډ+یا+تي) (اس۔مو) دغوا مېښو وغېره د لنگېدلو نه پس ورومبو دوو دریو ورځو پې۔ چې وارگۀ ترې جوړولے شي۔

**کانډیال :** - (کا+ن+ډ+یا+ل) (اس ۔مذ ، ج ـــونه) ۱ـ دیو بوټي نوم ۔بادپرک برېوکۍ ۲۔یو خړ رنگے بوټے ۔پاڼې نۀ لري، خو ډانډے ئې پیپه وروي ۔دا تازه تازه ټکولے ناجوړه غواگانو له ورکولے شي۔

**کانسټبل :** - (کا+ن+س+ ټې+ب+ن) (انگ۔اس۔مذ)سپاهي۔دپولس (پولیس) سپاهي۔

**کانسټي ټیوشن :** -(کا+ن+س+تي+ټ+یو+ش+ن) (انگ ۔اس ۔مذ ج ـــونه)۱ـ جوړښت۔ ۲ـ طبیعت۔مزاج۔ ۳ـ قوانین۔دیو ریاست د ستوري قوانین۔

اساسي قانون.

**کانسو نېنټ** : – (کا+ن+سو+نې+ن+ټ) (انګ ـ اس ـ مذ) صحیح تورے هغه توري چې د شونډو نه واخلې تر ښکته غاړې پورې په خوله د مختلف قسمه بندیزونو په ذریعه جوړولے شي ـ (د واول په مقابله ـ)

**کانسي** : – (کا+ن+سي) (اس ـ مو) کانسي یا کاسي د پښتو یو لویه قبیله ده ـ دخرشبون (بن سړبن) د اولاد ځخه ګڼلے شي ـ د سړبن په حقله وئیلے شي چې د قېس دویم زوے وۀ خو تاریخي لحاظ سره ثبوت نۀ لري ـ ددې قبیلې غورنیکۀ خرشبون په دریو زامنو کښې یو وۀ نوم ئې کسي یا کانسي وۀ ـ عام طور سره د بلوچستان په مختلفو سیمو کښې خصوصاً د کوئټې خواوشا کښې اوسي ـ

**کانغوزک** : – (کا+ن+غو+ز+ک) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) د وېښتو نه جوړ شوے دام لومه چې وړې مرغۍ چرچنې وغیره پرې نیسي ـ

**کانفرنس** : – (کا+ن+ف+ر+ن+ش) (انګ ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) د مشورې مجلس ـ مجلس شوریٰ د صلا مشورې دپاره غونډه ـ

**کانکرت** : – (کا+ن+ک+ر+ت) (اس ـ مذ ـ ج ـ ان) یو ښکاري کارغۀ دے وائي چې دا دوه یو ځاے په اتفاق ښکار کوي ځکه ورته مرغ دو برادر هم وائي برغونې جوړه ـ باتور

**کانکریټ** : – (کا+ن+ک+ر+ي+ټ) (انګ ـ مذ) ۱ ـ د باجرۍ ـ شګې او د سمیټونه جوړه شوې مساله ـ چې عمارتونو وغیره په جوړولو کښې پکارولے شي ـ کنکریټ ـ پوخ ـ کلک ۲ ـ باجري ـ نري کاڼي ـ

**کانکړ** : – (کا+ن+ک+ړ) (اس ـ مذ) هغه بوټے چې مړاوے شوے او زېړ شوے وي ـ

**کانګر** : – (کا+ن+ګ+ر) (صف ـ مذ ، مو ـ ه) راښکلے شوے شګه ـ راښکے شوې ـ کشیده ـ وګوړئ کانکړ

**کانګر** : – (کا+ن+ګ+ر) (اس ـ مذ) کاڼیزه شګه ـ کاڼے شوې شګه

**کانګړی** : – (کا+ن+ګ+ر+ی) (اس ـ مو) (بل) هغه لرګے چې دواړو سرونو ته ئې کړۍ لګېدلې وي ـ په دې کښې دوه تېمان زوړند وي ـ او په اوږو ئې وړي ـ بانګۍ ورته هم وائي ـ

**کانګرس** : – (کا+ن+ګ+ر+س) (انګ ـ اس ـ مذ) ۱ ـ غونډه ـ جمع ـ اجتماعي ـ جمعیت ، انجمن ـ ټولے ـ ډله ـ پارټي ـ ۲ ـ (کامع) په شریک هندوپاک کښې هغه جماعت چې دملک د ازادۍ د پاره ئې جدوجهد کړے دے ـ په اول سر کښې په دې کښې ګڼ شمېر مسلمانان شامل وو ـ خو وروستو چې ورڅرګنده شوه چې هندوان په ملک کښې په اکثریت کښې دي ځکه که ازادي راکړے شي نو بیا به د هندو اکثریت حکومت جوړ شي ـ اخر ډېر مسلمانان ددې جماعت نه بېل شول ـ او خپل جماعت مسلم لیګ کښې شامل شول چې مشر ئې محمدعلي جناح (مرحوم) وو ـ چې د قائداعظم په لقب یادېږي د قائداعظم په رهنمائي کښې مسلمانان په دې بریالي شول چې ځان له یو بېل ملک او حکومت جوړ کړي ـ چې پاکستان نومېږي ـ

**کانګړه** : – د پېښور په ضلع کښې یو پخوانے کلے ـ چې د یو متل په وجه شهرت لري ـ چې د کانګړې په ټس کښې لاړې بتګرامه ـ کانګړه د چارسدې په ضلع کښې راځي ـ

**کانګړی** : – (کا+ن+ګ+ړي) (اس ـ مو ، ج ـ انې) یوه خاورینه وړه انګیټۍ چې محفوظه کړے شوې وي ـ کشمیریان ئې په غاړه کښې زوړندوي ـ

**کانګو** : – (کا+ن+ګو) (اسم ـ واحد ـ مذکر) ګونګے ـ اُلو ـ یو قسم مارغۀ

**کانګرو** : – (کا+ن+ګو+رو) (انګ س اس ، مذ ، ج ـ ګان) یو عجیبه ځناور چې په استریلیا کښې موندے شي ـ وروستنۍ پښې ئې ډېرې لوئې وي او مخکښنۍ ئې وړې وي ـ یوه کځوړه شان لري ـ خپل بچې په دغه کځوړه کښې ځان سر ګرځوي ـ کنګرو ـ

**کانګوړه** : – (کا+ن+ګو+ړَ) (صف مو ، ج ـ ړې) ترټرے ـ ترټرۍ ژبه ـ ننښتې ژبه

لـه هېبتـه ورتـه هـېڅ وئـیلے نشـم

ګنـه کلـه زمـا ژبـه کـانګوړه ده

**کانګه** : – (کا+ن+ګ) (اس ـ مو ، ج ـ ګې) کونړے ـ یو قسم حشره چې د ځاروو په څرمن ونښلي او وینې ئې څښي ـ ۲ ـ روه ـ پېچس ـ دستونه د نس خوږې یا ګېډې خوږېدنه په دستونو کښې روې او وینه وتل ۳ ـ قے ـ باقي ـ ګرځون ـ

**کانګې** : – (کا+ن+ګ+ې) (اس ـ مو) ۱ ـ د اواز عکس ـ د اواز راګرځېدنه یا رابرغېدنه ـ انګۍ ۲ ـ غلغله ـ بازګشت ـ انګازه ـ ازانګه ـ

**کانون** : – (کا+نو+ن) (ف رسي ـ مذ) ۱ ـ منقل ـ د اور ځاے ـ د اور د بلولو خاص ځاے ـ ۲ ـ د قانون بدل شکل ـ

**کانۀ** : – (کا+ن) (پ ـ فعل) د ,,کنل ، ، مصدر نه د ماضي صیغه کنستۀ ـ

**کانه** : – (کا+ن) (پ اس ـ ج ـ نې) ۱ ـ عجیبه پېښه ـ عجیبه واقعه ـ خلاف توقع واقعه ۲ ـ خلاف توقع یا ناګهانه پېښېدونکې واقعه یا مصبیت ۳ ـ معامله ـ کار

**کانه** : – (کا+ن) (اس ـ مو ـ ج ـ نې) ۱ ـ وزر ـ دمخ پورتنۍ برخه ۲ ـ د چشمو فریم ـ غشے ـ سرکنده وابنۀ ـ

**کانه** : – (کا+ن) (اس ـ مو ، ج ـ نې) د عینک فریم ـ د چشمو فریم ـ شهپر د مرغو ـ

**کانه وانه** : – (کا+ن+وا+ن) (اس ـ تف ، ج ـ کانې وانې) ۱ ـ انې بانې ـ دړې وړه دوپړه ـ ۲ ـ ټال مټول ـ نکړې فکړې ـ اخواږخوا ـ ۳ ـ عجیبه پېښه

**کانې وانې** : – (کا+نې+وا+نې) (پ تر ـ اس ، مو) پېښه ـ شامت

**کانې** : – (کا+ن+ی) (اس ـ مو) ۱ ـ دغوږ سورے ـ د غوږ والۍ ۲ ـ د مرغانو د وزر د ډانډې تشه برخه چې ستنې په کښې کښېښنودے شي ـ ۳ ـ د قلم څوکه ـ کهے ـ چې قلم ترې جوړېږي ـ کانه ۴ ـ د وښو (تبره) تېغه ـ تیلے ۵ ـ داړې سوهان ـ (سوان) ۲ ـ کاکي ـ چاچي د ترۀ د ښځې لقب ـ

**کانے** : – (کا+نے) (صف ـ مذ) ماهر ـ په کوم کار کښې کامل

**کانے** : – (کا+نے) (اس ـ مذ) د سوهان اره ـ

**کانې وانې** : – (کا+نے+وا+نے) (اس ـ ج) (بل) ژړا فریاد ـ شور ـ زوږ ـ نعرې سورې ـ لکه : (د دویم واده نه پس) په کور کښې ئې کانې وانې وي ـ

**کاڼ** : – (کا+ن+ړ) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) یوه غرئیزه ونه – چې د شاه بلوط په شان وي

**کاڼاو.** : – (کا+ڼا+ؤ) (اس ـ مذ) د لوهار اوزارونه ـ د اهنګر د کار رکولو اسباب او سامان

**کاڼن.** : – (کا+ن+ړ+ن) (صف مذ ، مو ـ ه) کاڼیز ، کاڼي واله ، سنګلاخ

**کاڼۀ.** : – (کا+ڼ+ۀ) (اس ـ جم) بډګال ـ الیتار ' بډګال (نر لوخ ـ یو قسم وابنۀ

**کاڼۀ.** : – (کا+ڼ+ۀ) (اس ـ مذ ، ج) د "کوڼ" جمع ده.

**کاڼي.** : – (کا+ڼ+ي) (اس ـ مذوج) د کاڼے جمع

**کاڼي ټک** : – (ـــــ ټ+ک) (پ تر ـ اس ـ مذ ، ج ـ ان) کاڼي ټکوونکے ـ سخت محنت مزدوري کوونکے

**کاڼي کودي** : – (ـــ کو+دي) (ب تر ـ اس ـ جم) د کور مال اسباب ـ د کور لوښي لرګي ـ د کور ښۀ او بد سامان

**کاڼي په کاڼي جوګه لګول.** : – ناشونے کار کول ـ د انتهائي شوم سړي نه بود کول

**د کاڼي کربنه** : – (ـــ ک+ر+خ/ شَ) (پ تر ـ اس ، مؤ ـ ج ـ ښې) په کاڼي راښکلې شوې کربنه ـ هر کله چې په اسانه نۀ ورانېږي ځکه ـ پخه خبره ـ پائداره خبره نۀ بدلېدونکې خبره

**کانړے** :- (کا+ن+ړ+ے)(اس-مذ ، ج-ي) (۱) سنګ-تیږه-غرګے(عام طور سره خلک کانړے غرګے او تیږه د یو بل په معنٰی استعمالوي. خو ښائي چې تیږه دغرهٔ ماتې شوې برخې ته وئیلے شي. لویه وي او که وړه. او کانړے د سیند غونډ شوو کاڼو ته وئیلے شي. ځکه چې د تلې کاڼي ته کانړے وائي، تیږه ورته نهٔ وائي. او دا همېش د سیند غونډو کاڼو نه جوړولے شي.

پهٔ سیند کښې کاڼي ډېر وي خو یو نیم په کښې سپړ وي (متل)

(۲) د تلې د تللو کانړے- د وزن کانړے (پخوا بهٔ د وزن دپاره عموماً د سیند غونډ کاڼي استعمالېدل، وروستو د اوسپنې اوزار راغلل. نو دغو ته بهٔ ئې هم کانړے وئیلو. ځکه د تول کاڼي ضروري نهٔ ده چې د سیند کاڼي وي)

**(په چا)ـــ پرېوتل** :- مصیبت راتلل-افت راتلل

**ـــ زړهٔ** :- (ـــ ز+ړ) (پ تر-صف) د کاڼي پهٔ شان سخت زړهٔ-سنګدل-ناترسه-بې رحمه

**ـــ زر** :- (ـــ ز-ر) (پ تر-اس، مذ ، ج-ري) هغه خاص تور کانړے چې زرګران پرې د زرو خالص والے معلوموي.

**کاڼي.** :- (کا+ڼ+ي) (اس صف-مو) د کانړے تانیث دے

**کانړے** :- (کا+ ن+ ے) (صف-مذ ، ج-ان) هغه چې یو سترګه ئې ړنده وي. یو سترګے-کالګ-کاړینګ

**کاڼیزه مزکه** :- (ـــ م+ز+ک) (و ـــ کاڼیځه زمکه)

**کاڼیز** :- (کا+ڼ+ي+ز) (پ تر-صف مذ ، مو-ه) (۱) کاڼو واله - هغه ځاے چې ډېر کاڼي لري-سنګلاخ-کاڼیځ (۲) د کاڼي نه جوړ شوے (۳) بې حده سخت زړے- ناترسه

**ـــ زمکه.** (ـــ ز+م+کَ) (پ تر-مو، ج-کې) هغه زمکه چې کاڼي پهٔ کښې ډېر وي. په کاڼو سخته زمکه-سنګلاخه زمکه-کاڼیځه زمکه.

**کاڼي کوړم.** (کا+ڼ+ي+کو+ړ+م) (مذ) هغه تالاب چې ډېر ژور وي او غاړې ئې د پخو ښتو نه جوړې شوې وي

**کاڼي ګورم.** (کا+ڼ+ي+ګو+ر+م) (اس مع) په وزیرستان کښې د یو کلي نوم دے. د بایزید انصاري (پیر روښان) کلے وهٔ.

**کاواک** :- (کا+وا+ک) (صف-مذ ، مو-ه) ۱. په مېنځ کښې ډډ -په مېنځ خالي، تش مېنځے- کوکله ۲. سست-کاهل-بوده ۳. پرېوتونکے-د سقوط په حالت کښې ۴. سرګردانه- اواره

تهٔ چې زغورے سرومال په عاشقۍ کښې
عاشقي دا هسې چېرې ده کاواکه (رحمان بابا)

مجازاً پوچ ګویه-بکواسي.

**ـــ توب** :- (ـــ تو+ب) (و ـــ کاواکي) پوچ ګوئي-ډډ والے.

**کاواکي** :- (کا+وا+کې) ۱. دکاواکه (مونث) جمع ۲. دکاواکه اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل

**ـــ خبرې**:- فضول خبرې - بې معنې او بې مطلبه خبرې - خوشې خبرې

**کاواکي**:- (کا+وا+کي) (اس -مو) ۱. ډډ والے -په مېنځ تشوالے ۲. سست والے - بوده والے- بیهودګي

**کاوچه** :- (کا+و+چَ) (ق اس-مو، ج-چې) چپرکټ

**کاوړ** :- (کا+و+ړ) (اس-مذ) غصه- قهر- غضب- سخت- پرغز-ګواښ

**کاوړه** :- (کا+و+ړَ) (اس-مؤ ج- ړې) ۱. سخته -ترکه ۲. غصه- توغمه

**کاوړي** :- (کا+و+ړي) (اس صف-مذ) غصه ناک-قهرجن-زر سختېدونکے

**کاوړې** :- (کا+و+ړې) ۱. د کاوړه جمع ده ۲. د کاوړه اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل

**کاوش**:- (کا+و+ش) (ف-اس، مذ ، -ونه) تحقیق کول-تفتیش کول تلاش-جستجو-کوښښ (اصل معنٰی ئې کنستل دهٔ)

**کاوو** :- (کا+وو) (و -کاهو)هغه مشهوره سبزي چې کچه خوړے شي -یوه دوائي.

**کاوین.**:- (کا+وي+ن) (اس-مذ ، ج-ونه) ۱. کابین-ولور-مهر ۲. د وادهٔ دعوت یا خوړه ۳. نکاح، (زړه پانګه) (اورکزو نکاح دپاره دا تورے اوس هم مروج دے)

**کاه.** :- (کا+ه) (ف-اس-مذ) واښهٔ-وچه ګیاه

**ـــ ربا** :- (ـــ ر+با) (ف تر-اس-مذ) یو قسم څیز دے چې واښهٔ ځان ته راکاږي- اکربه-کهربا- د دې نه تسپې (تسبیح) جوړولے شي. (په عربۍ کښې کمربا بجلۍ ته وئیلے شي.

**ـــ فروش**:- (ـــ ف+رو+ش) (ف تر-اس/صف مذ ، مو-ه) واښهٔ خرڅوونکے-ګیاه خرڅوونکے

**ـــ کشان** :- (ـــ ک+شا+ن) (ف تر-اس-مذ) په اسمان کښې د ډېرو ګڼو ستورو یوه پلنه کرښه شان جوړه شوې ده. چې د اسمان لاړ غوندې ښکاري. پخوانو خلکو دې ته مختلف نومونه اېښې دي. فارسي دان ورته کاه کشان یا کهکشان وائي. یعنې لکه چې چا واښهٔ راښکلي وي. پښتانهٔ ورته (عموماً) د پېغمبر ﷺ د اس یا د دلدل لاړ وائي. په حقیقت کښې دا په کروړونو ستوري دي او دومره لرې دي چې لکه د نورو ستورو نه بېل بېل نهٔ ښکاري. سپینه دوړه یا لاړ غوندې ترې جوړه شوې ده.

**کاه** :- (کا+ه) (اس-مذ) کهه-خارښت-خارش

**کاهان.**:- (کا+ها+ن) (اس-مع) په بلوچستان کښې د یوې علاقې نوم

**کاهرېزه.** :- (کا+ه+رې+زَ) (اس-مو، ج-زې) ۱. د وښو وړوکے شان ډکے ۲. یو قسم ازغن (اغزن) بوټے چې نرې نرې ازغې یا پاڼې لري او د غنمو په فصل کښې کېږي. په اخر کښې ټول بوټے زېړ رنګے شي. کاریزه.

**کاهش** :- (کا+ه+ش) (ف-اس-مذ ، ج-ونه) ۱. کمے-نقص-کمېدنه , کماوښت-نقصان ۲. تکلیف

**کاهښت**:- (کا+هَ+خ/ښ+ت) (اس-مذ ، ج-ونه) ۱. کمے-نقص ۲. معمولي شان خارښت-کهښت-خارښت

له صحبته ئې کاهښت د حرص خېژي
دي په اصل کښې اهل دنیا (حمیدبابا)

۳. څهٔ کار ته امادګي یا خواهش-عبشه خواري-تشویش-وسواس-

**کاهښته** :- (کا+هـ+خ+ش+ت) (صف مو) ۱ـ کاهښت واله -خارښتي -۲ـبدرنګ

**کاهګل** :- (کا+ه+ګ+ل) (و-کا-ګل) د ختې او بُوسو پلستر

**کاهل** :- (کا+ه+ل) (مص) خارښت کول-خارښتېدل

**کاهل** :- (کا+ه+ل) (ع-اس صف مذ ، ج-ان) سست-تصنبل-کهال-ټمبوس-جونګړ-شاړ-بې پروا

د دنیا په چاروچست شه مستعجله
سست د دین په کار کښې ولې شوې کاهله

**کاهله** :- (کا+ه+ل) (عپ تر-صف-مو ، ج-لانې) د کاهل تانیث دے.

**کاهلي** :- (کا+ه+لي) (عف تر-اس-مو) سستي-تنبلي-کهالي-ټمبوسي-جونګړتوب-کهالت

**کاهن** :- (کا+ه+ن) (ع-اس-مذ ، ج-ان) د یهویانو مذهبي سړے-چې فالونه ګوري-او پیش ګویانې کوي-توریتي-ترویتي-عېب ګو-فال بین-فال ګر-

**کاهنه** :- (کا+ه+ن) (عپ تر-اس-مو، ج-انې) د کاهن تانیث.

**کاهو** :- (کا+هو) (ف-اس-جم) دیو بوټي د تخم نوم دے-چې په دارو کښې

استعمالېږي.

**کـاهي** :- (کـا+هي) (اس ـمـو، ج ـــ ګـانې) خنـدق ـد قلا(قلعـه) نـه چارچاپېره کنستلې شوې کنده. (ه ـ کهائي)

**کائد** :- (کا+ئـ+د) کېدکوونکے ـ مکرجن ـ مکار ټګ جن.

**کائن** :- (کا+ئـ+ن) (ع ـ اس ـ مذ) موجود کېدونکے ـ په وجود کښې راتلونکے ـ

**کائنات** :- (کا+ئـ+نا+ت) (ع ـ اس ـ ج) مخلوقـات ـ موجودات ـ هرڅۀ چې پېدا شوي دي ـ کل پېداوښت ـ دنيا ـ زمکه او په اسمانونه او هر څۀ چې پـه زمکـه او اسمانونو کښې دي ـ عالمونـه ـ د الله پـه کـن ټـول رابنکاره شوي اشياء

**کاینه** :- (کا+ئ+نَ) (اس ـ مو، ج ـ نې) قصاص ـ بدل ـ

**کايي** :- (کا+يي) (صف) ژور ـ جور ـ عميق

**ـــــدریاب** (ـــ د+ر+یا+ت) (پ تر ـ اس ـ مذ، ج ـ ونه) ژور سمندر ـ جور سمندر، بحر عميق ـ

**کب** :- (ک+ب) (اس ـ مذ، ج ـــ ان ـ ونه) ۱ ـ مهے ـ ماهي ـ ۲ ـ د اسمان پـه دولسو برجونو کښې د یو برج نوم دے ـ حوت ـ

**د ـــ میاشت** :- (د ـــ م+یا+ن+ش+ت) دشمسي کـال دولسمه میاشت (چې پـه فارسۍ کښې ورته اسفند وائي)

**کب (قَب)** :- (ک+ب) (اس ـ مذ، ج ـ ونه) ۱ ـ د بنې دم مـلا کښې بهرتـه راوتے کوږوالے ـ ۲ ـ د اوښ یا د غويي دملا کوږ والے ـ کوهان کوڼے ـ

**ـــــراوتل** :- په مـلا کښې کوږوالے پېدا کېدل کوزه پښت کېدل ـ شاټوغے کېدل ـ کړوپ کېدل

**کبا** :- (ک+ب) (و ـ قبا) لوئي قميص چُغه

**کباب** :- (ک+با+ب) (اس ـ مذ، ج ـ ونـه) دخوراک مشـهورد مـزې ځيز ـ چې د قيمې د جوارو د اُوړو، پيـازو او نورو مسالو نـه د ټيکۍ غونـدې جوړه کړي او په تېلو ډلو يا شله کښې ئې تلوي ـ يا په سيخ پـورې کـړے شـي، او په انګار وريت کـړے شي ـ دې تـه سيخ کبـاب وائي ـ او چپلي کباب ورته هم وائي ـ

**ـــــ کول** :- ۱ ـ کباب جوړول ـ ۲ ـ مجازاً د کبـاب پـه شـان ورتـول ـ سوځول ـ پـه اور خچـول ـ ډېر سخت تکليف او عـذاب رسـول ـ ۳ ـ مجازاً پـه رشـک سيالۍ کښې سوځول پسخول ـ

**ـــــ کېدل** :- ۱ ـ کباب جوړېدل ـ په وريتېدل ۲ ـ د کباب په شان سوځېدل ـ ورتېدل ـ ډېر سخت تکليف يا دوکه رسېدل ـ ۳ ـ سخت مئين کېدل ستې کېدل ـ

**شامي ـــ** :- (شا+مي) (ف ـ اس ـ مذ) دمېده کړي قيمې، د چاڼو د اوړو او نورو مسالونه جوړه شوې وړه ټيکۍ ـ چې په تبخي په تېلو کښې پخولې او سره کولې شي ـ

**کبابي** :- (ک+با+بي) (ف تر ـ اس مذ، ج ـ ان) کباب تلوونکے ـ کبـاب جـوړونکے او خرڅه دؤنکے ـ د کبابو د کرهي واله ـ

**کباد** :- (ک+با+د) (لفظ عربي) دکبد جمع ـ اينه ـ ځيګر

**کبار** :- (ک+با+ر) (ع ـ اس ـ ج) د ,, کبير، ، جمع ده ـ (عربي لفظ) لـوے خلـک ـ غټ خلک مشران سپين روبي

**کبار** :- (ک+ب+با+ر) (ع ـ صف) لوے ډېر لوے

**کباړ** :- (ک+با+ړ) (ه ـ اس ـ ج) مات ګډ سامان ـ استعمال شوے او مات ګډ فرنيچر ـ

**ـــــ خانه** :- (ـــ خا+ن) (اس، مو، ج ـ نې) ۱ ـ هغه ځاے يا کوټه چېرتـه چې د مات ګډ اوبې کاره سامان او فرنيچر کښېښودے شي ـ ۲ ـ مجازاً ـ هغه ځاے چرته چې د کور مختلف قسم ځيزونه بې ترتيبه او ګډ وډ پراتۀ وي ـ

**کباړي** :- (ک+با+ړي) (اس ـ مذ، ج ـ ان) هغه دکاندار څوک چې زاړۀ استعمال شوي مات ګډ اودکاره وتي ځيزونه خرڅوي ـ

**کباغاړے** :- (ک+با+غا+ړے) (اس ـ مذ ـ ج ـ ړي) (بل) د غـانټول (لالـه) يوقسـم ـ چې رنګ ئې تک سوروي او په مېنځ کښې ئې تور داغونه وي

**کباله** :- (ک+با+ل) (و ـــ قباله) اشټام ـ د زمکې جائداد کاغذ

**کبائر** :- (ک+با+ئي+ز) (ع ـ اس ـ ج) دکبيـره جمـع ده ـ لـوے ګناهونـه ـ کبيـره ګناهونه غټ ګناهوته ـ

**کبد** :- (ک+ب+د) (ع ـ اس ـ مذ) جګر ـ ځيګر ـ ائينه

**کبډمار** :- (ک+ب+ډ+ما+ر) (پ تر ـ صف ـ مذ ـــ ه) دکبډې د لـوبې مـړنے ـ دکبډۍ لوبغاړے

**کبـډي** :- (ک+ب+ډي) (اس ـ مو) د هلکـانو زلمـو يـوه لوبـه ـ پـه دې کښـې لوبغاړي دوه ډلې شي ـ د مېدان په مېنځ کښې يو کرښه راکاږي ـ د کرښې دواړ سره نو تـه کاښي وغېره کښـږدي ـ بيـا لوبغـاړے د مخالف مېـدان تـه ورواوړي ـ او کبډي وائي ـ

**وړه ـــــ** (و+ړ ـــ) په دې کبډۍ کښـې يـو لوبغـاړے د محـالف فريـق پـه مېدان کښې د کرښې نه لرې نۀ ځي ـ ځکه چې په دې کښې د مخـالفې ډلې لوبغـاړي ئې رابنکـي او د سـاه ترختمېدلو پـورې ئې کرښې تـه رسېدلوته نۀ پرېږدي ـ

**کبر** :- (ک+ب+ب+ر) لوے والے ـ غرور ـ تکبر ـ ناشکري ويـاړ ـ (سپين رېرتوب اُوچت خيالي ـ ټاټ باټ ـ

يا وفـا ئې هرګز کړې لـه چانۀ وه
يا خونۀ ګوري له کبره وسرتورته (خوجه محمد بنګش)

**د ـــ کاسه نسکوربدل** :- ۱ ـ د لويۍ يا دکبر په وجه تکليف يا نقصان مونـدل ـ ۲ ـ د لويۍ يادکبر ځيز نۀ پاتې کېدل ـ

**ـــ سن** :- (ـــ س+ن) (عف تر ـ صف، مذ، مو ـــ ه) لـوے عمـر والـه ـ د ډېـر عمر ـ زوړ بوډا ـ

**ـــ سني** :- (ـــ س ـ ني) (عف تر ـ اس ـ مو) زوړوالے ـ بوډا والے ـ

**ـــــ کلاني** :- لوئي ـ غرور ـ تکبر

هغو لار د دين غلطه کړه بيشکه
چې خصلت پيشه ئې کبر کلاني ده

**کبراء** :- (ک+ب+را) (ع ـ اس ـ ج) د کبير جمع ده ـ لوے خلک ـ مشران ـ غټان ـ

**کبرجن** :- (ک+ب+ر+ج+ن) (ب تـر ـ صف مذ، مو ـــ ه) کبروالـه ـ مغرور ـ لـويي کوونکے لوے چارے ـ

**کبرځني** :- (ک+ب+ر+ځ+ن) (ق ـ اس ـ مذ) ديـوې ځنګلي مرغـۍ نـوم دے چې اُوږده مښوکه لري ـ او خوراک ئې د بلوط د ونې چينجي وي

**کبرداغ** :- (ک+ب+ر+دا+غ) (ق، اس ـ مذ) هغه قورمـه چې غوښـه پـه کښـې ډېـره زياته وي ـ هغه غوښـه چې په زيـات مقدار کښې پخه کـړے شي ـ او بيـا ترې لړه لړه خوري ـ

**کبرژن** :- (ک+ب+ر+ژ+ن) (و ـــ کبرجن) د تکبر ځښتن

**کبرغان** :- (ک+ب+ر+غا+ن) (ق ـ اس ـ مذ) يوغرئينر ځناور دے ـ د غټ منـږک هـومره دے چې رنـګ ئـې زيـړبخن تـور وي ـ د جارجيـا پـه سيمه کښـې مونـدے شي ـ کبرغې هم ورته وائي ـ

**کبرئ** :- (ک+ب+را) (ع ـ صف ـ مو) ۱ ـ د اکبر تانيث دے ـ ۲ ـ ډېره لويه ـ ډېره ستره ۳ ـ په منطق کښې د شکل دويم جز ـ

**کبريا** :- (ک+ب+ر+يا) (ع ـ اس ـ مو) ۱ ـ لوئي ـ بزرګي ـ عظمت ـ ۲ ـ غـرور ـ کبـر ـ ځـان لـوے ګڼـل ـ د خداے پـه نومونو کښې دا نـوم شـامل نۀ دے ـ خـو د فارسۍ ځينو شاعرانو په دې معنيٰ کښې استعمال کړے دے)

**کبريائي** :- (ک+ت+ر+ئي) (ع ـ صف ـ مو) لوئي ـ عظمت ـ (چې خداے پاک سره

جوړېږي)

**کبریت** :- (ک+ب+ري+ت) (ع.اس.مذ) ۱.ګوګړ.ګندهک. ۲.د اور د بلولو تیلې.ماچس.

**کبریتي** :- (ک+ب+ري+تي) (عف تر.صف) ۱.کبریت یعني ګوګړو سره تعلق لرونکے.ګوګړي. ۲.رنګ شین بخن زېړ.

**کبږ** :- (ک+ب+ږ) (ق.اس.مذ، ج ــ ونه) داس کمند.غټ او مضبوط پړے چې اسونه پرې تړلے کېږي.

**کبږۍ** :- (ک+ږ+ی) د ,, کبږے ,, تانیث دے.

**کبک** :- (ک+ب+ت+ک) (ف.اس.مذ.ج ــ ان) زرک.ځرک.یا زرکه.ځرکه. مشهوره مرغۍ چې تلل ئې ډېر خوندناک دي.او شاعران د معشوقې د تګ سره تشبیه ورکوي.

**ـــــ خرام** (ــ خ+را+م)

**ـــــ رفتار** (ـ ر+ف+تا+ر) (ف تر.صف) ۱.د زرکې په شان تګ یا تلل ۲.(شعر) د معشوقې ښکلے تګ له د زرګې تلل سره تشبیه ورکولے شي.

**ـــــ دري** (ــــ د+ري) (ف تر.اس.مذ) غرئیز زرک یا زرکه چې ډېره ښکلې او خوش رفتاره وي.دغرۀ چرګ.(شاعران ئې د معشوقې درفتار سره د تشبیه په طور استعمالوي) د غرۀ چرګ.نرکبک دري ته بوګرے او ښځه (ماده) کبک دري ته په کونړ کښې زیره چوګه وائي.

**کبل** :- (ک+ب+ل) (ف.اس.جم) مشهور وابنۀ.کبله.مرغه.چې صحرائي خود رو وابنۀ دي خو په چمنونو باغونو کښې خاص طور سره لګولے شي .دا وابنۀ چې دبره سرنه پرېکړے شي نو ګور شکل کښې بیا را وټوکېږي .برَوه

**ـــــ زار** :-(ــ زا+ر) (پ تر.اس.مذ ج ــ ونه) هغه زمکه چرته چې د کبل وابنۀ ډېر زیات پیدا شوي وي.مرغه شین شینکي واله زمکه.

**کبل** :- (ک+ب+ل) (ق.حرف) باعث.سبب.کبله.(عموماً ,,کبله,, وایه شي)

**کبل ډوډه** :- (ک+ب+ل+دو+ډ) (اس.مو.ج ــــ ډې) د یو قسم دارو نوم دے.

**کبلۍ پاڼه** :- (ک+ب+ل+ی+پا+ڼ+ه) (ق.اس.مو) یو قسم ګیاه چې د څاروو خوراک دے او د سپرلي په وخت غرۀ کښې کېږي

**کبلے** :- (ک+ت+لے) (اس، مذ، ج ــ بي) د هوسۍ بچے

**کبلبدل** :- (ک+ب+لې+د+ل) د قبلبدل بدل شکل دے (و ــ قبلبدل)

**کبود** :- (ک+بو+د) (ف.اس.مذ) نیله رنګ.اسماني رنګ

**ـــــ چشم** (ــ چ+ش+م) (ف تر.صف مذ، مو ــ ه) هغه چې سترګې ئې شنې (نیله) وي.شین سترګے.

**ـــــ فام** :-شین رنګے.نیله.کبودي

**کبودي** :- (ک+بو+دي) (ف.صف) نیله.نیله رنګ لرونکے.شین اسماني رنګ واله.

**کبوړه** :- (ک+بو+ړ) (اس.مو) د اوړونه جوړه شوې کاچي داوړو نه جوړه شوې شیره.

**کبوړے** :- (ک+بو+ړے) (اس.مذ) هغه خاص نرم خوراک چې د مریض د پاره د نشاستې یا ساګو دانې وغېره نه جوړولے شي.

**کبوړے** :- (ک+بو+ړے) (اس.مذ، ج ــ ډي) ۱.وړوکے کب.وړوکے مهے ۲.د پنډۍ غوښه چې د کب په شان وي.

**کبوړے** :- (ک+بو+ړے) (اس.مذ، ج ــ ډي) د ګوړې شیره.کک

**کبي** :- (ک+بي) (ق.اس.مو) د اس یا د اوښ تېرسرے.هغه دانه چې اس ته په خولۀ کښې اچولے شي.

**کبۍ** :- (ک+ب+ی) (اس.مو) د څرمنې یا وازګې وغېره هغه منجیله شان چې د تنبو د ستنې په سرکښېښودے شي.چرمګۍ ګردنۍ.

**کبۍ** :- (ک+ب+ی) (و ــ کوبۍ)

**کبے** :- (ک+بے) (پ صف،مذ، مو ــ ی) کب واله.کجړے.کوږے.کوبړے.شاټیټے

**کبیده** :- (ک+بی+ده) (ف.صف) خفه.زهیر.ملول.غمجن.

**ـــــ خاطر** (ـــــ خا+ط+ر) (ف تر.صف مذ، مو ــ ه) په زړۀ زهیر.خفه.غمجن ، خته طبیعت.

**کبیر** :- (ک+بی+ر) (ع.صف مذ، مو ــ ه) ۱.د صغیر ضد دے.لوے بزرګ. مشر.سردار. ۲.د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي.

**کبیره** :- (ک+بی+ر) (اس.مو، ج ــ رې) ۱.کاغذ یا د څرمنې نه جوړ شوے د پېزار برش. ۲.د کبیر تانیث دے.لویه ګناه.

**کبیسه** :- (ک+بی+سَ) (ع.اس.مو، ج ــــ ې) ۱.هغه خاص کال چې په کښې د حساب د برابرولو د پاره څۀ ورځې ور زیاتولې شي (انګ.لیپ کال ۲. د تونډ میاشت.هغه میاشت چې د شمسي او د قمري کلونه تر مېنځه فرق دا ېستلو د پاره هردرې کاله پس په قمري میاشتو کښې ورزیاتولې شي.

**سال ـــ** :- (سا+ل ــ) (عف تر.اس.مذ) هغه (دریم قمري کال په کوم کښې چې یوه میاشت ور زیاتولې شي چې دا کال د شمسي کال سره برابر شي)

**کپ** :-(ک+پ) (اس.مذ.ج ــ ونه) ۱.لړزه.لړزه.رېږدنه.رپ ۲.چک.په غاښونو سره پرېکونه ۳.نمړۍ.نوړۍ.لقمه

**ـــــ ورکول** :- کنګالول.اوبوسره سرسري ونځل.

**کپ** :- (ک+پ) (انګ.اس.مذ، ج ــ ونه) ۱.پیاله.دچایو پیاله یا پیالۍ. ۲.د سپینو زرو هغه وړه یا لویه پیاله چې دواړو اړخونو ته کونډې لري.او د مقابلو ګټونکو له په انعام کښې ورکولے شي.

**نقري ـــ** :- (ن+ق+ر+ی ــ) (انګ ف تر مذ اس ،ج ــ ونه) د سپینو زرو انعامي پیاله.

**کپتان** :- (ک+پ+تا+ن) (انګ.اس.ج ــ ان) ۱.په فوځ او پولیس کښې یوه عهده . ۲.د سمندري یا د هوائي یجهاز د عملے لوے افسر. ۳. دلوبو د یو ټولي (ټیم) مشر

**کپر** :- (ک+پ+ر) (اس .مو، ج .رې) ۱.کنده .لوړه ژوره (خوره) (دالفظ بالعموم کند سره راځي یعني کنډ کپر یا کندې کپرې) ۲.هغه زمکه چې هواره نۀ وي چېرته ژوره (جوره) وي او چېرته لوړه.

**ګپر (کوپر)** :- (کُ.کو+پ+ر) د کفر بدل شکل دے.

**کپرک** :- (ک+پ+ر+ک) (اس.مذ) ۱.یخ.کنګل د واورو نرے تهه چې د اوبو په سر جوړه شي. ۲.کرانګ.کرنګ ۳.د زمکې د پاسه ختې نه جوړ شوي هغه ټیکرکي شان کوم چې د باران نه پس د ختو په وچېدلو او چاودلو سره جوړشي. ۴.لوړه.ژوره.ناهمواره.زمکه یا سړک.

**کپرلاښے** :- (ک+پ+ر+لا+ښ ے) (پ تر.اس.مذ) د کافرو ګورستان.د کافرانو مقبره

**کپرلے** :- (ک+پ+ر+لے) (ق.اس.مذ ،ج ــ لي) یو قسم غونډ شکله بوټے دے چې سرۀ ازغي لري.

**کپرمزے** :- (ک+پ+ر+م+زے) (ف تر.اس.مذ ، ج.زي) زنار.یوه نېټۍ چې مرۍ ته اچولې شي.

**کپره** :- (ک+پ+ر) (اس .مو، ج ــ رې) ۱.کوپړ .ککرۍ ۲.(مجازاً) د لوے دماغ خاوند.لوے شخصیت.

**کندي ـــ** (ک+ن+دي) (پ تر.صف.ج) هغه زمکه چې هواره نه وي چېرته لوړه وي او چېرته ژوره (جوره) ځاے په ځاے په کښې کندې او ډوغلونه وي.

**کپرۍ** :- (ک+پ+ر+ی) (اس.مو) ۱.دکپره تصغیر دے.(و ــ کپره) ۲.د مرۍ نه پورته د هډوکو مجموعه چې عموماً زړو قبرونو کښې موندے شي.د سر او مخ د هډوکو پنجره.سکېلېټن.

**کپریل** :- (ک+پ+ری+ل) (اس ـ مذ) وـــ د کپریل خبنته ـ

**د کپریل خبنته** :- د فابریک جوړښت ـ (پ تر ـ اس ـ مؤ ـ ج ـــ ې) هغه کارخانه چې په کښې کپریلونه جوړولے شي ـ د چتونو دپاره د خاص ټایلونو، بلاکونو خښتو دجوړولو کارخانه ـ

**دـــ خښته** (د ـ خ+خ+ش+ت) (ه پ تر ـ اس مؤ ج ـ ئې) هغه خاص قسم نرۍ او پلنه خاورینه پخه خښته کومه چې په چتونو اچولے شي ـ

**کپړ** :- (ک+پ+ړ) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) هغه بند چې کشتۍ لنګر سره تړلے وي ـ ګبره ـ بیاسته ـ غټ او کلک پړے ـ

**کپړ** :- (ک+پ+ړ) (اس ـ مذ ، ج ـــ ونه) بیاسته ـ غټ او کلک پړے ـ

**کپړ** :- (ک+پ+ړ) (اس ـ مو) د کور لوښي لرګي ـ د کور سامان ـ

**کپړ** :- (ک+پ+ړ) د "کپړه،، تحفیف دے ـ

**ـــ چاڼ** :- (ـ چا+ڼ) (ار پ تر ـ اس) ١ ـ د نرۍ کپړې نه څهٔ څیز چاڼونه د هغې غلبیل نه چاڼونه په کوم کښې چې د جالۍ په ځائے نرۍ کپړه لګېدلې وي ـ ٢ ـ د کپړې هغه لوے چاڼ چې اوړهٔ په کښې چاڼ کولے شي ـ

**کپړه** :- (ک+پ+ړَ) کپړا (اس ـ مؤ ج ـــ ړې) ټوکر ـ رخت چې جامې ترې جوړولے شي ـ ٢ ـ جامه ـ لباس

**ـــ اودل** :- ټوکر اودل ـ کپړه یا ټوکر جوړول ـ

**ـــ وہستل** :- ١ ـ جامې وباسل ـ ٢ ـ (دچا) داسې شرمول یا ټوکل چې جامې هم ورته نهٔ پرېښودل ـ سپینول ـ

**کپړۍ** :- (ک+پ+ړ+ۍ) (اس ـ مو) کشتي ـ کبډۍ (هشتنغر) غبر (بلوچستان)

**کپړۍ** :- (ک ـ کو+پ+ړ+ۍ) (اس ـ مو) دا د ار کوپۍ ـ

**کپړے** :- (ک+پ+ړ+ے) (ق ـ اس ـ مذ) د خاورین لوښی هغه ماته برخه چې بیا هم پکار یدے شي ـ

**کپسول** :- (ک+پ+سو+ل) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) یو وړوکے شان سرپوښ دګوند (سرېش) نه جوړ ډبے چې په کښې وچ دارو اچولے شي ـ او بیا په اسانه د مرۍ نه ښکته کولے شي ـ کېپسول ـ

**کپ کپ** :- (ک+پ+ک+پ) (صف ـ مذ) ټکرې ټکرې ـ بوټی بوټی

**کپله** :- (ک+پ+ل) (اس ـ مو ج ـ ې) د خوراک د یوې نمرۍ (نوړۍ) هومره څیز ـ یو غړۍ (نوړۍ) قدرې څیز ـ لقمه ـ ګپه ـ

**کپن** :- (ک+پ+ن) د کفن بدل شکل دے ـ هغه سپینه ناګنډلې کپړه کومه چې دمړي نه تاوؤلے شي ـ

**ـــ غل** :- (ـــ غ +ل) (پ تر ـ اس ـ مذ) د کفنونو غل ـ هغه کس چې د مړونه کفنونه وباسي ـ

**ـــ کښ** :- (ـــ ک+خ ـ ش) (پ تر ـ صف ـ مذ ، مو ـــ ه) ١ ـ هغه سړے چې د قبرونونه د مړو کفنونه راوباسي ـ د کفنونو رایستونکے ـ د کفنونو غل ـ ٢ ـ مجازاً کمینه او ذلیل سړے ـ ٣ ـ ګران فروش ـ

**کپنول** :- (ک+پ+ن+و+ل) (مص) په سړي کفن اچول ـ په کفن کښې نغښتل ـ

**کپني** :- (ک+پ+ني) (وـ کپني) کمپني ـ د سوداګرو ټولګے

**کپننه** :- (ک+پ+ن+ن+ه) (اس ـ مو) ١ ـ اضطراب ـ رېږدېدنه ـ رېږدندے ـ رعشه ٢ ـ له ډېره شوقه رېږدندے لګیدنه شوق ـ عصبانت ـ

**کپوت** :- (ک+پو+ت) (ه ـ اس ـ مذ) د سپوت ضد دے ـ نالائقه زوے ـ بد چلنه او ناکاره زوے ـ ناخلف ـ

**کپه** :- (ک+پَ) (اس ـ مو ـ ج ـ ې) لویه نمرۍ ـ غټ ـ نوړۍ

**کپه** :- (ک+پَ) (اس ـ مؤ ـ ج ـ ې) په خولهٔ کښې اچولو دمېده دارو پوټلے ـ مېده دارو یا سفوف په تلي کښې کنبښودے شي ـ

**ـــ کول** :- د تلي مېده دارو په خولهٔ کښې اچول ـ

**کپه** :- (ک+پَ) (اس ـ مو ، ج ـــ ې) شکرۍ ـ شکور ـ چې مېزري وغېره نه جوړ شوے وي ـ او مېوې دانې په کښې خرڅولے شي ـ

**کپی** :- (ک+پ+ی) (اس ـ مـو ،) ١ ـ یو قسم پېزار ـ پنه ـ ٢ ـ پنډۍ ٣ ـ د څناورو وربوز ـ

**ګپی** :- (ک+پ+ی) (اس ـ مو) د حیواناتو د پوندې هډوکے ـ

**ـــ خولې** :- (پ تر ـ صف) ١ ـ ارت خولے ـ وازخولے ـ لوے خولې واله ـ ٢ ـ (مجازاً) بې زړهٔ چې خولهٔ ئې هسې وازه وي او خبره نهٔ کوي ـ ٣ ـ د لستوڼو یو قسم ـ چې تنګ وي ـ

**ګپی** :- (ک+کو+پ+ی) (اس ـ مو) ١ ـ دهندي کپا تصغیر دے ـ د څرمنې نه جوړ شوے وړوکے شان ډبلے چې وړه شان خولهٔ لري ـ (دا عموماً د اوښ د څرمنې نه جوړلے شي ـ) ٢ ـ د ټیم وغېره نه جوړ شوے وړوکے ډبلے چې نرۍ وړه خولهٔ لري ـ په دې باندې مشین پرزو کښې دننه تېل ورکولے شي ـ د تېل ورکولو کوپی ـ

**کپے** :- (ک+پ + ے) (اس ـ مذ ، ج ـ ې) د اوښ وغېره خولهٔ تړونے

**کپیا** :- (ک+پ+یا) (هـ ـ صف) لرې کوونکے ـ غوڅوونکے ـ (هندکو: کپړان ـ پرې کول ـ)

**کپېدل** :- (ک+پې+د+ل) (مص) (بل) رېپېدل ـ لړزېدل ـ رېږدېدل ـ لکه: دهغهٔ بدن وکپېدهٔ

**کپېدنه** :- (ک+پې+د+ن) لړزېدنه ـ رېږدېدنه ـ وغېره ـ

**کپېدونکے** :- (ک+پ+ې+دو+ن+کے) (اس ـ مـذ ، ج ـــ کـی) لړزېـدونکے ـ رېږدېدونکے

**کپېدهٔ** :- (ک+ پې+ده) (وـــ کپېدنه) لړزیدنه ـ رېږدېدنه ـ

**کپیر** :- (ک+پې+ر) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) نهنګ مشهور ابي څناور سیسار (ګنا) ٢ ـ مګرمچ ـ ناکه

**کت** :- (ک+ت) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) د قط بدل شکل دے ـ وقطار ـ صف ٢ ـ تهه ـ برغون ٣ ـ د کهې د قلم پرې کړے سر ـ

**ـــ په کت** :- (ـــ پ+ک+ت) (ب تر ـ صف) قطار په قطار ـ په قطارونو کښې صف په صف ـ

**کت** :- (ک+ت) (هـ ـ اس ـ جم) ١ ـ په پان کښې د اچولو جز ، چې څینو ترخو ونو د پوستکي نه جوړولے شي ـ (هـ ـ کتها یا کته)

**کت** :- (ک+ت) (اس ـ جم) سم الفار ـ سپین زر ـ سنکهیا ـ یو قسم زهر ـ پاره ـ

**ګت** :- (ک+ت) (اس ـ مذ) ترخ ـ بغل ـ غبر ـ

**په ـــ کښې منډل** :- په ترخ کښې منډل ـ په ترخ کښې نیول یا پټول ـ

**کتاب** :- (ک+کی+تا+ب) اس ـ مذ ، ج ـ ونه کتب) ١ ـ د لیکلي شوي کاغذونو مجموعه چې یو ځائے ګنډلے شوے وي ـ

**ـــ الله** :- (ـ (ب+ل) +لا+(ه) (ع تر ـ اس ـ مذ) د الله پاک کتاب ـ قران مجید

**ـــ خانه** :- (ـــ خا+ن) (عف تر ـ اس ـ مو ـ ج ـ نې) ١ ـ هغه ځائے چې په کښې ډېر کتابونه پراتهٔ وي او خلک عاریتاً ئې را اخلي او لولي ـ کتب خانه لائبرېري ـ ٢ ـ د کتابونو د خرڅولو دوکان د کتب فروش دوکان ـ

**ـــ خوان** :- (ـــ خ+وا+ن) (عف تر ـ اس مذ ، ج ـــ ان ـ ١ ـ د کتاب لوستونکے ٢ ـ ذاکر ـ

**ـــ فروش** :- (ـــ ف+رو+ش) (عف تر اس ـ مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) کتابونه خرڅوونکے ـ کتب فروش ـ

**ـــ مقدس** :- (ـــ م+ق+د+د+س) (عف تر ـ اس ـ مع) ١ ـ پاک کتاب ـ قران مجید ـ ٢ ـ (عیسائي) بائیبل ـ انجیل ـ

**ـــ نویس** :- (ـــ ن+وي+ش) (عف تر ـ اس مذ ، ج ـــ ان) کتاب لیکونکے ـ مصنف ، مؤلف ـ

**اسماني ـــ** (آ+س+ما+ني) (عف تر ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) هغه کتاب چې د

اسمان نه راکوز شوے وي ـ یعنې د خداے پاک رالیږلے کتاب ـ لکه قرآن ـ تورات ـ زبور ـ انجیل ـ

**اهل ـــــ** (ا+هـ+ل ـــ) (عف تر ـ اس ـ جم) هغه کسان یا قام چې د پخوانو الهامي کتابونو ـ یعنې تورات ـ زبور ـ انجیل منونکي دي

**د ــــ چینجے** (ـــ چی+ن+جے) (عپ تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ جي) ۱ـ هغه وړوکے شان چینجے چې عماماً په کتابونو کښې پیدا کیږي ـ او په کښې ګرځي ـ ۲ـ هغه چینجے کوم چې د کتاب پاڼې وغیره خوري او سوري کوي ـ ۳ـ هغه سړے یا طالب علم چې هر وخت مطالعه کښې بوخت وي ـ ډیره مطالعه کوونکے ـ

**کتابت** :- (ک+تا+ب+ت) (ع ـ اس ـ مذ) ۱ـ لیکنه ـ تحریر ـ ۲ـ د چاپ د پاره په خاص کاغذ په خاص قسم سیاهۍ سره لیکل کول ـ

**خط ـــــ** :- (خ+ط ـــ عپ تر ـ اسم مذ) چیټي لیږل ـ رالیږل ـ مراسلت

**کتابچه** :- (ک+کی+تا+ب+چ) (عف تر ـ اس ـ مذ ـ ج ـ چې) وړوکے کتاب ـ هغه کتاب چې په پاڼو په اوږدوالي پلن والي وړوکے وي ـ یا د پاڼو د شمیر د لحاظه وړوکے وي ـ لنډ کتاب ـ پمفلټ ـ

**کتابدار** :- (ک+کي+تا+ب+دا+ر) (عف تر ـ اس مذ ـ ج ـ ان) د کتب خانې منتظم ـ لائبریرین ـ

**کتابداري** :- (کي+تا+ب+دا+ر+ي) (عف تر ـ اس ـ مو) د کتابونو ساتنه ـ د کتب خانې د منتظم کار او ذمه واري ـ

**کتابه** :- (ک+تا+ب) (ع ـ اس ـ مو ـ ج ـ بې) هغه عبارت چې په غټ خط د کاڼي په تخته لیکلے شي ـ او په قبر جومات یا په بل کوم عمارت لګولے شي په دې کښې د مړي یا د جومات یا د دغې عمارت په حقله څۀ معلومات لیکلي وي کتبه (سنګ قبر ـ لوح قبر ـ یا سنګ بنیاد وغیره)

**کتابي** :- (ک+تا+بي) (عف تر ـ صف) ۱ـ کتاب سره تعلق لرونکے ـ کتاب ته منسوب ـ ۲ـ په کتاب کښې لیکلے شوے ـ ۳ـ د شریعت په کتاب کښې لیکلے شوے ـ شرعي لیک یا حکم وغیره ـ لکه دا کتابي خبره ده ـ ۴ـ د کوم اسماني کتاب (لکه تورات ـ زبور انجیل) منونکے خو چې قرآن نۀ مني ـ اهل کتاب ـ

**ــــ علم** :- (ـــ ع+ل+م) فپ تر ـ اس ـ مذ) هغه علم چې د کتابونو په لوستلو حاصل شوے وي ـ په عمل تجربه کښې نۀ وي راغلے ـ

**ــــ مخ** (ـــ م+خ) (یاڅهره) (ـــ (ث) س +ه+ر) (فپ تر ـ صف) د کتاب په شان مخ ـ مجازاً ښکلے ډولے مخ ـ

**کتار** :- (ک+تا+ر) (صف ـ مذ ـ مو ـ ه) نخره ـ غنج عموماً ویت سره یو ځاے راځي یعنې ویت کتار ـ

**ویت ـــــ** :- (وي+ت ـــ) (پ تر ـ صف مذ ـ ج ـ ان) ۱ـ نخرې کوونکے ۲ـ په خپل
کار کښې نخرې یا لوئي کوونکے ـ ۳ـ ډیرې خبرې کوونکے ـ وتې کوونکے ـ

**کتار** :- (ک+تا+ر) (اس ـ مذ ـ ج ـ ونه) لوبه چې وړو وړو کاڼو یا ګیټکو سره کولے شي ـ زمرے

**کتاره** :- (ک+تا+ر) (پ اس ـ مو ج ـــ رې) قصه ـ اوږده قصه ـ د قطاره لفظ بالعموم قصه سره یو ځاے راځي اود قصې د تاکید معنٰی ورکوي ـ یعنې قصه کتاره یا قصه قطاره ـ ۲ـ اوږدې قصې ـ اوږدې خبرې لکه قصې کتارې پریږده ـ د مطلب خبره راته وکړه

**کتان** :- (ک+تا+ن) (ع ـ اس ـ مذ) ۱ـ یو قسم ښنمینه کپړه ـ (په شعرونو کښې راځي ـ چې دا کپړه چې سپوږمۍ ته مخامخ ویښوے شي ـ نو ریښې ریښې شي) ۲ـ یو قسم وریښمن ټوکے چې د سپوږمۍ د
رڼا سره ټوټې ټوټې چوي ـ

**ـــــ خانه** :- (ـــ خا+ن) (عف تر ـ اس مو ـ ج ـــ نې) هغه ځاے چې ډیر کتابونه په کښې پراته وي ـ او خلک ترې د لوستې دپاره خوښوي ـ لائبریري ـ

**ــــ سماوي** :- (ـــ س+ما+وي) (عف تر ـ اس ـ ج) هغه کتابونه چې د اسمان نه رالیږلي شوي وي ـ الهامي کتابونه ـ لکه ـ قران ، انجیل ، تورات او زبور ـ

**ــــ فروش** :- (ـــ ف+رو+ش) (عف تر ـ اس ـ صف مذ ، ج ـــ ان مو ـــ ه) کتابونه خر څوونکے ـ

**کتبوزے** :- (ک+ت+بو+زے) (ق ـ اس ـ مذ ، ج ـــ زي) د اوښ وغیره پوزبند ـ چې د میزري وغیره څخه جوړولے شي ـ

**کتبه** :- (ک+ت+ب) (و ـــ کتابه) د قبر تختۍ

**کتبیز** :- (ک+ت+بي +ز) (اس ـ مو) ښاپیرک ـ څکالے ـ شب پرک

**کتپیز** :- (ک+ت+پي+ز) (اس ـ مذ ، ج ـ ان) ښاپیرک ـ اسمان څکالے ـ ږندوکے ـ چمبړک (چمګادړ)

**کترک** :- (ک+ت+ر+ک) (اس ـ مذ ، ج ـــ ونه) یو قسم لوښے دے ـ

**کتره ـــــ کول ـ وئیل** :- (طنزاً) په اشارت خبرې کول ـ په ناز نخرو خبرې کول ـ

**کترے** :- (ک+ت+رے) (اس ـ مذ ، ج ـــ ري) کرکه کوونکے ـ نفرت کوونکے کرکجن ـ

**کترے** :- (ک+ت+ر+ے) (ق ـ اس ـ مذ ، ج ـ ري) ۱ـ هغه ګډ چې غوږونه ئې دیوې ګوتې هومره وي ـ ۲ـ کوکرے ۳ـ د سپي بچے (کوترے)

**کترے باران** (ک+ت+رے+با+را+ن) (اس ـ مذ) یو قسم زنانه کالے (زبور)

**کترینک** :- (ک+ت+ري+ن+ک) (اس ـ مذ ، ج ـ ان) ځیرک او هوښیار او جسارت واله هلک ـ (چې د عامو په قط کښې بې ادبه بللے شي) بې ادبه هلک ـ سپین سترګے

**کتغ** :- (ک+ت+غ) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) سالن ـ انګولے ـ نګولے ـ پخکړے

**کتغلے** :- (ک+ت+غ+لے) (اس ـ مذ ، ج ـ ي) د زړې نمرې لویه ټوټه ـ چې په ژمي (جمي) کښې دغوا غوایانو په شا باندې اچولے شي ـ

**کتک** :- (ک+ت+ک) (اس ـ مذ) هغه زمکه چې د غنمو فصل په کښې ډیر ښۀ کیږي ـ

**کتک** :- (ک+ت+ک) (اس ـ واحد ـ مذ) د هندي یا د فصلي کال د اوومې میاشتې نوم ـ کاتک (اکتوبر ـ نومبر په مینځ کښې راځي) لکه چې میا شت د کتک شي نو جوار کوتک شي (متل) د کتک وړې په کوتک وهل چې دانې ئې جُدا شي ـ

**کت کت** :- (ک+ت+ک+ت) (اس ـ مو) ۱ـ د چرګو اواز ، خصوصاً چې څۀ وخت دانې وغیره خوري (او خپل بچې ورته رابلي) ۲ـ د چرګو د بللو اواز

**کت کت** :- (ک+ت+ک+ت) (اس صوت) ۱ـ په کبډې کښې لو بغاړے د کت کت اواز کوي ـ په دغه وخت کښې ساه بنده ساتي ـ

**کتکي** :- (ک+ت+ک+ی) (اس ـ مو) په معده کښې یو کڅوړه شان ده ـ هزار خانه ـ

**کتکے** :- (ک+ت+ک+ے) (اس ـ مذ ، ج ـ کي) د ښاروي وغیره لړے ـ

**کتل** :- (ک+ت+ل) (مص) ۱ـ نظر کول ـ لیدل ـ (حال: ګوري) ۲ـ معاینه کول ـ لکه : بیمار کتل ـ ۳ـ سزا ورکول ـ بدل اخیستل لکه زۀ به درسره وګورم ـ ۴ـ مطالعه کول ـ لوستل لکه کتاب کتل ۵ـ انتظار کول ـ ترمابنامه مې ورته وکتل ـ ۶ـ ملاقات کول ـ ملاوېدل ـ مخامخ کېدل ـ ۷ـ مخ کول ـ لحاظ کول ـ فلاني خپل مور او پلار ته هم ونۀ کتل ـ ۸ـ طمع لرل ـ امید لرل ـ ۹ـ توجه ورکول ـ مخه کول لکه تۀ لږ ځان ته وګوره چې په څۀ حال ئې ـ ۱۰ـ لټول ـ

**په درنه سترګه**ـــــ :- دروند ګڼل عزت او اخترام کول.

**په سپکه سترګه**ـــــ :- سپک ګڼل. په نظر کښې کم او سپک راتلل. په شا نۀکتل. تښتېدل. داسې منډه وهل چې په شا د کتلو همت نۀ موندل

**په غېټو سترګو**ــــــ :- په غورسره کتل. په پرانستو سترګو کتل.

**چاته نۀ**ـــــ :- ۱. چا ته نظر نۀ کول ۲. د چا انتظار نۀ کول ۳. د چا مخ لحاظ نۀ کول.

**دسترګو لاندې**ـــــ :- پټ پټ کتل. په غلا غلا کتل

**کتلمات** :- (ک+ت+ل+ما+ت) (اس. مو) د جنګ ختمېدنه

**کتم** :- (ک+ت ـ ت+م) (ع. اس. مذ) پټونه. پټ ساتنه. خفیه والے. پټ والے. پوښنه.

**کتمخ** :- (ک+ت+م+خ) (اس. مذ، ج. خې) د بارونو دپاسه د خورولود پاره دمېزرې د پاڼو نه جوړه شوې کلکه ټوټه چې د کټې په مخ ګنډلے شي.

**کتمندو** :- (ک+ت+م+ن+دو) (و ـ کهاټمنډو) د یوښهر نوم دے (نیپال ملک کښې)

**کتمیره** :- (ک+ت+مي+ر) (ق. اس. مؤ) یو قسم نقش (انځور) چې په شړۍ کښې سور تار سره کولے شي او په مېنځ کښې ئې سپین ټکے وي.

**کتندویه** :- (ک+ت+ن+دو+يَ) (اس. صف) کتونکے. لیدونکے. انتظار کوونکے.

**کتنه** :- (ک+ت+نَ) نظر کونه. معاینه. انتظار توقع. مزاور کونه. بدل اخېستنه. لوستنه.

**لیدنه**ـــــ :- (لي+د+ن ـــ) لیدل کتل. ملاقات. ملاوېدل راملاوېدل. مخامخ کېدل

**کتنې** :- (ک+ت+ن +نې) (اس. مو، ج) لوستنې.

**کتنېدل** :- (ک+ت+نی+د+ل) (محص) تخنبدل. ختنبدل.

**کتوځے** :- (ک+تو+(د)ز ے) (اس. مذ، ظر، ج. ځي) د کتلو ځاے. د معائنې کولو ځاے. ۲. د انتظار ځاے. انتظارخانه

**کتود** :- (ک+تو+د) کیتوډ (کې+تو+د) دیوې برقي منبعې منفي اړخ یا برخه

**کتور** :- (ک+تو+ر) (اس. مو) د اسلام نه وړاندې د کافرستان د هغې علاقې چې اوس نورستان نومېږي یوه قبیله ده د غالباً چې د کتهار لفظ د سخت زړي په معنٰی) له دغې کافرې قبیلې څخه مشتق شوے دے.

**کتولے** :- (ک+تو+لے) د تنګے خولې اوږده ټوکرۍ چې په کښې د انځرانو وغېره میوې ټولولے شي.

**کتون** :- (ک+تو+ن) (اس. مذ) ۱. کاتۀ. کتل. معائنه. کتنه ۲. انتظار. ۳. د انتظار ځاے

**کتونکے** :- (ک+تو+ن+کے) (اس. مذ، ج. کي) ۱. لیدونکے. نظر کوونکے. ۲. معائنه کوونکے. ۳. انتظار کوونکے.

**کته** :- (ک+ت) (اس. مو. ج ـ تې) د خر یا د اوښ وغېره پالان.

**کته کړے خر** (ـــ ک+ړے+خ+ر) هغه خر چې کته پرې کښېښوے شوې وي یعنې بارولو ته تیار شي سمدستي پکار ېدونکے. لکه زوړ یار کته کړے خر دے. (متل)

**کتې** :- (کَ+تې) ۱. د ,کته، جمع ده ۲. د ,کته، اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل.

**کتې** :- (ک+تې) (هـ. اس. مو) د زرګرانو یو اوزار دے. چې د سرو یا سپینو پترې پرې پرې کوي.

**کتې بتې** :- (ک/کې+تې، ب/بې+تې) هغه خط چې نۀ لوستلے کېږي وران ویجاړ خط. شکسته خط

**کتې بتې لیکل** :- داسې خط لیکل چې نۀ لوستلے کېږي. مبهم خط لیکل (د دې محاورې اصل داسې دے. چې د چا ښتون نوکر ښار ته راغے. د ښار دغه دوستان ئې په حساب کښې لګیا وو. چې دغه نوکر بیرته کلي ته ستون شه. او مالک ترې تپوس وکړ. چې هغوي څۀ کول. دۀ ورته ووې چې لیکل ئې کول. وې څۀ ئې لیکل وې نور خ وراته یاد نۀ دي خو څۀ کیتې بیتې ئې لیکل. د کیتې بیتې نه هغه مطلب اکتې (۳۱) بتې (۳۲) وو ـــ د دې نه د مبهم یا نۀ لوستلے کېدونکے خط محاوره جوړه شوه)

**کتیر** :- (ک+تی+ر) (هـ. اس. جم) کڼ. چیړ. کتیره. (ګوند) یو قسم دوائي د سپین چیړ په رنګ.

**کتیره** :- (ک+تي+ر) کتیرا (ف. اس. مو) یو قسم چیړ دے. چې په دارو کښې استعمالېږي. ,,ګوند کتیرا،، هم ورته وائي.

**کتي لعل** :- (ک+تی+ل(ع) +ل)

**(ـــ لال)** :- (ـــ لا+ل) یو بوټے دے. چې تکې سرې سرې دانې کوي. کوتې لال

**کټ** :- (ک+ټ) (اس. مذ، ج ـ ونه) چارپائې. د ناستې ملاستې د پاره مشهور څیز.

**ـــ پُتلي** :- (هـ. اس. صف) (ث ز) ۱. د لرګي ګوډاګے ۲. هغه ګوډاګے چې په تارونو سره ګډولے او مختلف حرکات پرې کولے شي. ۳. د بل په لاس کښې لوبېدونکے سړے. د بل په اشارو کارکوونکے.

**ـــ پوزے**:- (ـــ پو+زے) کټ او پوزے مجازاً: د خاکسارۍ په دود استعمالوے شي.

**ـــ ته ختل** (ـــ ت+خ+ت+ل) ۱. څملاستلو د پاره کټ ته ورختل. څملاستل. ۲. د کوروالي دپاره د ښځې کټ ته ورختل.

هــلــکــه کــټ تــه ورو ورخــېــژه
د جینۍ کټ د چلغوزي دے مات به شینه

**ـــ نیول** :- ۱. په کټ کښې څملاستل. ۲. ناروغه کېدل. د ناجوړتیا له کبله په کټ کښې څملاستل. د پاڅېدلو اوګرځېدلو جوګه نۀ پاتې کېدل. په اوږدې ناجوړتیا اخته کېدل.

**په شلېدلي ـــ کښې پرېوتل** :- دېر زیات عموماً په قصو کښې راځي. چې بادشاه کورته راغے. نو په یو شلیدلي کټ کښې پرېوت. دا د دې خبرې نخښه وي چې بادشاه ته لویه ګرانه مسئله ور دوڅاره شوې ده. د کور خلک چې وګوري نولور یا زوے ورله راشي او د خفګان وجه ترې وپوښتې په حقیقت کښې د بادشاهانو په محلونو کښې شلېدلے کټ چیرے وي

**د ـــ سرته کښېناستل** :- دعزت په ځاے کښېناستل.

**د ـــ لنګې ته کښېناستل** :- دکشرانو په ځاے کښېناستل، د کم عزت په ځاے کښېناستل.

**کټ** :- (ک+ټ) (اس. مذ) هغه رنګ کوم چې د باغان (څرمنې رنګوونکي) د انارو د پوستکي نه جوړوي.

**کټ** :- (ک+ټ) (انګ. اس. مذ) پرېکېدنه. پرمې شوے. قطع غوڅ. پرېکړه. غوڅه. په هندي کښې هم کټ په همدغه معنې کښې موجود دے. خو(غالباً) دا لفظ د انګریزۍ نه اخستے شوے دے

**ـــ پیس** :- (ـــ پي+س) په کارخانه کښې د ټانونو نه د کچ نه پس زیاتې شوې وړې لوے ټکړې چې بیا په تول خرڅولے شي.

**ـــ کوټ** :- (ـــ کو+ټ) (ارپ تر. اس. مذ) ۱. پرې کونه. غوڅونه. ۲. په لیکلي شوي عبارت کښې په ځینو تورو، ټکو خط راښکل. ۳. کمے زیاتے.

**کټ کوټ کول** :- ۱. پرې کول غوڅول. ۲. په لیکلي شوي عبارت کښې په ځینو(غلطو)ځایونو باندې لیکې کربنې راښکل. په لیک کښې کمے زیاتے کول. په لیک کښې بدلون راوستل

**ـــ کول** :- ۱. پرې کول. غوڅول. ۲. جدا کول، بېلول. ۳. (د تاش او

دګنجغې په لوبه کښې) په میدان کښې اچولې پاڼو باندې د بل رنګ پاڼه چول ـدا رنګ ګڼته په رنګ وي) ۴ـ(تاش یا ګنجفه) د تاش د ګډ وډ کړې ګډېږې نه څهٔ پتې اُوچتول ـ او د ګډېږې د لاندې کښېښودل چې ئې ګډې وډې کړې. ۵ـوضع کول ـ کمول ـ ۶ـد بل خبره په مینځ کښې وهل ـ دبل خبره لاپوره نهٔ وي چې خپله خبره کول ـ ۷ـتردید کول ـ ۸ـ(اشارې سره) وژل (وجل ـ مړول ـ ۹ـد باډېوې تار دبلې باډېوې تار سره پرې کول ـ

**کټ**: ـ (ک+ټ) (اس ـ واحد ـ مذکر ، ج ـ نه) د څملاستو دپاره د څلور بازوګانو څلورو پښو(خپو) نه جوړ او بوڼ نه بوڼلے شوے څیز ـ جمع کټونه ـ

**کټ**: ـ (ک+ټ) (اس ـ جم) مستیاره ـ دوائي ده ـ

**کټ**: ـ (ک+ټ) (صف ـ مذ ، موـه) تابع مهمل دے ـ د غټ یا غټه سره راځي ـ او د غټ په معنٰی کښې تاکید پیدا کوي ـ لکه: غټ کټ سړے ـ غټه کټه سنجه ـ

**کټاب**: ـ (ک+ټا+ب) (اس ـ مذ) د ګنډلو یو قسم دے ـ (ف ـ خوش داندان)

**کټار**: ـ (ک+ټا+ر) (صف ـ مذ ، موـه) ۱ـبې مینې ـ بې مهر ـ سخت زړے ـ هغه سړے چې اروا ئې چاسره نهٔ ګډېږي ـ ۲ـ سرکښه مست او وران څاروے ـ ۳ـسخت دښمن ـ

زهٔ طالب احمددین خاندم خوشا لیږم

تندر پرېوت په د ښمن کټار زما (احمد دین)

**دـــــ کافر**: ـ سخت زړے کافر ـ

کافران به دا کټار مسلمانان شي

که رقیب مې په ژړا وترسېدهٔ

**کټار**: ـ (ک+ټا+ر) (ه ـ اس ـ مذ ، ج ـــ ونه) خنجر ـ یو خاص قسم کړه چاړهٔ

**کټار**: ـ (ک+ټا+ر) (اس ـ مذ) دیوې لوبې نوم دے چیندرو ـ چتکے ـ چترو

**کټاره**: ـ (ک+ټا+ره) (وـ کټپهره) کټیره ـ د چهت دپاسه جنګله بازارګې چې یو ګټ ته وي ـ

**کټاره**: ـ (ک+ټا+ر) (وـ کټاره)

**کټاره**: ـ (ک+ټا+ر) (صف مو) هغه غوا (مېښه) کومه چې د لوشلو دپاره بل (اوپره) سړے نزدې نهٔ پرېږدي ـ وحشت کوونکے ـ

**کټاره**: ـ (ک+ټا+ر) (اس ـ مو) ج ـ رې) یو خاص قسم لوے خنجر ـ

**کټارې**: ـ (ک+ټا+ر+ی) د کټار تصغیر دے وړوکې کټاره ـ

**کټاربدل**: ـ (ک+ټا+رې+د+ل) (مص) ۱ـسرکش کېدل ـ سخت زړے کېدل ـ ۲ـد غوا (مېښې) سرکښه کېدل او دپیو لوشلو دپاره څوک څان ته نزدې نهٔ پرېښودل ـ

**کټاس**: ـ (ک+ټا+س) (هـ ـ صف ، مذ ، موـــه) ډېر متعصب ـ کلکې عقیدې واله ـ سخت ـ لکه: فلانے ډېر کټاس نبشنلې دے ،،

**کټالې**: ـ (ک+ټا+ل+ی) (ه ـ اس ـ مو) هغه (خاورین) لوښے چې سرهٔ زر یا سپین زر په کښې ویلې کوي ـ او ناسره جز ترې بیلوي ـ

**کټاو**: ـ (ک+ټا+و) (وـ کټاب) د ګنډون یو قسم

**کټ پتلي**: ـ (ک+ټ+پ+ت+لي) (ه ـ اس ـ مو) ۱ـ د هندی نه اخستے شوے دے ـ د لرګې ګوډاګے ـ چې د تارونو په مدد سره ګډولے شي د کټ پتلی تماشه ۲ـمجازاً هغه کس چې د بل په اشارو کار کوي ـ (خپله خوښه نهٔ شي کولې)

**کټ پټ**: ـ (ک+ټ+پ+ټ) (اس ـ صوت) (عوام) د انګرېزی ژبې د الفاظو اوازونه ـ مجازاً ـ انګریزي ـ

**کټخ**: ـ (ک+ټ+خ) (اس ـ مذ ، ج ـــ ونه) د شپې د اغوستلو څیز ـ برستن

**کټر**: ـ (ک+ټ+ر) (انګ ـ اس ـ مذ) پرې کوونکے ـ د نوکونو پرېکولو اله ـ نوک تراش

**کټر**: ـ (ک+ټ+ټ+ر) (ه ـ صف) (وـــ کټاس) سخت ـ متعصب

**کټره**: ـ (ک+ټ+ټ+ره) (ه ـ اس ـ مؤ ، ج ـــ رې) وړه شان کوټه ـ د کورونو وغیره وړه شان احاطه ـ منډی بازارګے ـ

**کټ کټ**: ـ (ک+ټ+ک+ټ) (اس ـ صوت) د خندا اواز ـ خټ خټ ـ برق برق ـ برک برک ـ کړس کړس ـ

**پهـــــ خاندل**: ـ (پهـــــ خا+ن+د+ل) یا (پهـــــ خ+ن+د+ل) په زوره زوره خاندل په قهقهه خاندل په خټ خټ خاندل ـ په برق برق خاندل ـ په کړس کړس خاندل ـ

**کټکے**: ـ (ک+ټ+کے) (اس ـ مذ ، ج ـ کي) دخندا اواز ـ کټ کټ اواز ـ خټ خټ ـ قهقهه

**کټکۍ**: ـ (ک+ټ+کے) (اس ـ مو ج ـ کۍ) وړوکے کټ ـ

**کټکي**: ـ (ک+ټ+کي) ,,د کټکے ،، جمع ده ـ

**کټګے**: ـ (ک+ټ+ګے) (وـ کټکے) وړوکے کټ ـ

**کټګے**: ـ (ک+ټ+ګے) (اس ـ مذ ، ج ـ ګي) یوقسم بوټے دے ـ زهرناک دے څاروي وغیره پرې مري

**کټل**: ـ (ک+ټ+ل) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) د یوې میوې نوم دے ـ د نارنج له قسمه ـ

خـــربوزه خرمــا انځیـر نـارنج کـــټل آم

سیب انار انګور به مومي اناناس نور

**ګټل**: ـ (ک ـ ک+ و+ټ+ل) وهل ـ وژل ـ

**ــــــ کېدل**: ـ وهلے کېدل ـ وژلے کېدل ـ

**کټلاګ**: ـ (ک+ټ+لا+ګ) (انګ ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) فهرست ـ

**کټلس**: ـ (ک+ټ+ل+س) (انګ ـ اس ـ مذ) یو قسم کباب ـ چې غوښه په کښې نهٔ وي د الوګانو وغیره نه جوړولے شي ـ

**کټلمه**: ـ (ک+ټ+لے+مَ) (اس ـ مو ، ج ـــ مې) د وړو مرغو چنچنو وغیره د نیولو وړه لرګینه کوړکۍ ـ کوړکومے

**کټماله**: ـ (ک+ټ+ما+ل) (اس ـ مو ، ج ـــ لې) د زنانهٔ د غاړې د یو کالي نوم چې د سرو زرو هم وي او د سپینو زرو هم ـ

**کټ مټ**: ـ (ک+ټ+م+ټ) (حرف) بالکل ـ بعینه ـ هوبهو ـ

**کټمل**: ـ (ک+ټ+م+ل) (اس ـ مذ) مونګړ ـ یوقسم وړوکے شان سور رنګے چنیجے ـ چې عموماً په کټونو کښې پیدا کېږي او دبني ادم وینې څښکي. کوټیاک

**کټمبره**: ـ (ک+ټ+مې+رَ) (اس ـ مو ج ـــ رې) لوے چاقو یا چاړهٔ

**کټمبرے**: ـ (ک+ټ+مې+رے) (اس ـ مذ ، ج ـــ ري) ۱ـ د کونترې بچے ۲ـ د کونترې هغه بچے چې بازي ګرې اړول ئې نهٔ وي زده

**کټو**: ـ (ک+ټو) (اس ـ مو ج ـــ وې) کټوی ـ لویه کټوی ـ دپخلي لوخے خاورین لوښے

**کټواز**: ـ (ک+ټ+وا+ز) (اس ـ مع) د یوې علاقې (ضلعې) نوم دے

**کټ وټ**: ـ (ک+ټ+و+ټ) ,,د ګډ وډ ،، بدل شکل دے ـ ګډ وډ شوے ـ مخلوط ـ امېز شوے ـ

**کټوټکے**: ـ (ک+ټو+ټ+کے) (اس ـ مذ ، ج ـ کي) هغه وړوکے شان ټال یا زانګو چې کوچیان د ماشومانو دپاره په تمبو کښې د ننه جوړوي

**کټوخے**: ـ (ک+ټو+خے) (اس ـ مذ ، ج ـ خي) خاورین مرتبان

**کټور**: ـ (ک+ټو+ر) (اس ـ مذ) هغه سړے چې د ښځې د اثر لاندې وي ـ زن مرید ـ د ښځې نه ویرېدونکے ـ

**کټور**: ـ (ک+ټو+ر) (هـ ـ صف) اباد ـ غوړېدلے ـ دناریننهٔ په څېنو نومونو کښې لیدے شي ـ

**کټورې**: ـ (ک+ټو+ر+ی) (هـ ـ اسم ـ مو) د ,,کټورے ،، تصغیر دے

**کټورے** :- (ک+ټو+رے) (هـ۔اس۔مذ، ج ـــ ري) مسین جام۔هغه جام چې د مسو یا تانبې وغیره نه جوړ شوے وي۔

**کټوري** :- (ک+ټو+ري) ۱۔د ,, کټورے،، جمع ده ۲۔د ,, کټورے،، اضافي او مجري وغیره (متغیر) شکل

**کټوري غوبنتل له زانې** :- ناشونے کار کول۔عبث کوښښ کول۔

**کټوړ** :- (ک+ټ+و+ړ) (صف مذ،مو ـــ ه) د فرمائش یا د فهرست مطابق څیز۔

**کټونبے** :- (ک+ټو+ځے) (اس۔مذ، ج ـــ نبي) د خاورو یا د ګټو د نغري پایه۔

**کټول** :- (ک+ټ+ؤ+ل) (مص) وخت ورکول۔په حرکت کښې راوستل۔

**کټول** :- (ک+ټ+ؤ+ل) (مص) (و ـــ کټ کول)

**کټوله** :- (ک+ټو+لَ) (اس۔مؤ، ج۔لې) هغه ځاے چې د ناوې د پاره اراسته کړے شي۔

**کټولے** :- (ک+ټ+ؤ+لے) (صف ـ مذ ـ ج : لي) حرکت ورکړے ـ په حرکت کښې راوستے۔

**کټونه** :- (ک+ټ+ؤ+نَ) (حمص) حرکت ورکونه۔په حرکت کښې راوستنه۔ زغلونه۔روانونه۔

**کټوونکے** :- (ک+ټ+وو+ن+کے) (اس۔مذ، ج۔کي) حرکت ورکوونکے۔په حرکت کښې راوستونکے زغلوونکے روانوونکے۔

**کټوه** :- (ک+ټ+و(ه)) (اس۔مو) د دستار شمله۔طره۔لویه کټوۍ

**کټوۍ** :- (ک+ټ+و+ۍ) (اس۔مو) ۱۔د اینګولي وغیره د پخولو خاورین لوښے۔ ۲۔د پخولو لوښے۳۔مجازاً۔پخکړے۔انګولے لاوڼ

**ـــــ څـټ** (ـــ (ت) س +ټ) (پ تر ـ اس) کټوۍ څټوونکے ـ تالي څټ ـ خوشامندګرے۔کمینه۔رذیل سړے۔

**کټه** :- (ک+ټَ) (اس۔مذ) لوے۔غټ۔ستر (و ـــ کټه باز)

**ـــ باز** :- (ـــ با+ز) (اس۔مذ، ج ـــ ونه) غټ باز۔د بازونو یو غټ او تکړه قسم۔جره باز

**ـــ پیش** :- (ـــ پي+ش) (اس۔مذ) ځنګلي پیش۔(ظفر)

**ـــ پیش** :- (ـــ پي +ش) (اس۔مذ) ترنیګلی۔ترنیګړی۔تینګړی پراینښ۔

**ـــ پیش وهل۔ورکول** :- ترنیګړی ورکول۔تینګړی ورکول پرانیس وهل۔ لوړکے وهل

**ـــ کېدل** :- لوے کېدل۔په تن وجود غټېدل، لوئېدل۔

**کټه** :- (ک+ټ) (صف۔مو، ج ـــ تې) د کټ۔تانیث دے غټه۔پېړه مضبوطه

**کټه ګوته** :- غټه ، پېړه یا لنډه ګوته د لاس او ښپې۔

**کټه کټه ملاوول:** جوړه کول، روغه کول، تعلق بیا قائمول ، ماشومان خپلو کښې داسې روغه کوي۔

**کټه** :- (ک+ټ) (اس ـ مو) د نارنج یو قسم چې غټ وي او دپوستکي نه ئې مربه جوړولے شي۔

**کټه پور** :- (ک+ټ+پو+ر) (پ تر ـ اس۔مذ) لوے برج

**کټه** :- (ک+ټَ) کُټ کُټ کوونکے چرګه۔کړکه

**ـــ چرګه** :- (ـــ چ +ر+ګَ) کړکه چرګه۔

**کټهره** :- (ک+ټ+ه+رَ) (هـ۔اس ـ مو ـ ج ـــ ري) د لرګو داوړدو پټو یا د غونډو لرګونه جوړه شوې جالۍ چې د حفاظت دپاره په کوټه کښې په چت یا په ویر مېدان کښې ودرولې شوې وي۔ (خصوصا د دې قسم هغه حد بندي چې په عدالتونو کښې د منصف (جج وغیره او د مدعي مدعا علیه وکیلانو وغیره د ځایونو ترمینځه ودرولې شوې وي)

**کټهل** :- (ک+ټ+ه+ل) (و ـــ کټیل) یوه مېوه چې د پاسه پرې ازغي وي۔

**کټه مټه** :- (ک+ټ+م+ټ) د کټ مټ تانیث دے۔

**کټه مهر** :- (ک+ټ+م+ه+ر) (صف ،مذ، مو ـــ ه) هغه چې په زړهٔ کښې هېڅ مهر مینه نهٔ لري۔سخت زړے هغه چه چ اسره ئې ګډون نهٔ کېږي۔یا چې د نورو د جذباتو خیال نهٔ ساتي۔

**کټه مهري** :- (ک+ټ+م+ه+ر+ی) (صف ـ مو) سخت زړهٔ توب ـ بې مخي ـ ناترسي۔

**کټه میر** :- (ک+ټ+مي+ر) (اس ـ مذ) په غرهٔ کښې چې ډېر اور بل کړي او تماشې کوي۔لکه :,, کټه میر ئې اچولے دے. (په اورکزو کښې د رجب او شعبان په پینځلسمه شپه هلکان ډېر لرګي راجمع کوي او بیا ورته اور ورکوي)

**کټه مېر** :- (ک+ټ+ه+م+ے+ر) (و ـــ کټه مهر) بې مسیني۔بې مهره

**کټه مېرے** :- (ک+ټ+ے+رے) (و ـــ کټه مهر) د کټه میر مجروري شکل

**کټۍ** :- (ک+ټ+ۍ) (اس۔مو) د پخلي خاورین لوښے۔کټوۍ

**کټۍ** :- (ک+ټ+ۍ) (اس۔مو) د اوبو یا د شرابو وغیره پېمانه۔

**کټۍ** :- (ک+ټ+ۍ) ۱۔د ,, کټے،، تانیث دے۔۲۔د مېښې ماده بچے

**کټے** :- (ک+ټے) (اس۔مذ، ج ـــ ټي) ۱۔د مېښې نر بچے۔د اودهٔ ګوجر مېښه نرکټي (راوړي) (متل)۲۔مجازاً غټ او کلک وجود واله هلک

**کټے** :- (ک+ټے) (اس ـ مذ) د چنو یا د مهو وچ شوے بوټے (چې د اُوښانو، څاروو د خوراک دپاره جمع کولے شي)

**کټے** :- (ک+ټے) (ق۔اس۔مذ) د پیو (شودو) د اندازه کولو لرګے۔

**کټے** :- (کو۔ک +ټے) (اس۔صوت) د کُوچي (د خر بچي) یا د غواو مېښو د بچ ود شرلو اواز

**کټېدل** :- (ک+ټې+د+ل) (مص) روانېدل۔په حرکت کښې راتلل کوچېدل۔

**کټېدنه** :- (ک+ټې+د+نَ) (حمص) په حرکت کښې راتلنه۔حرکت کونه۔روانېدنه ـ کوچ کونه۔

**کټېدونکے** :- (ک+ټې+دو+ن+کے) (اس ـ نا ـ مذ، ج ـــ کي) حرکت کوونکے ـ په حرکت کښې راتلونکے۔روانه کېدونکے۔تلونکے کوچ کوونکے۔

**کټېر** :- (ک+ټې+ر) (اس۔مذ، ج ـــ ونه) اشرعشر۔په یو ځاے د یو څو کسانو په ګډه (پر بدل) کارکونه بسکر۔بلندره۔

**کټېرۍ** :- (ک+ټې+ر+ۍ) (اس۔مو) هرکاره۔کرېچۍ

**کټیک** :- (ک+ټي+ک) (اس۔مذ، ج ـــ ان) د څرمنې رنګوونکے۔د باغ چرمګر۔

**کټیکے** :- (ک+ټي+کے) (اس۔مذ، ج۔کي) چمیارتوب۔یا موچي توب۔

**کټیکي** :- (ک+ټي+کي) (اس۔مو) چمیار توب موچي توب

**کټیهره** :- (ک+ټي+(ه) +رَ) (هـ۔اس۔مو۔ج۔رې)۱۔جنګله۔د دوېم چت وراندې یا د چت د پاسه جوړه شوې جنګله ۲۔هغه جنګله چې په عدالت کښې د مجسټرېټ یا د جج او د نورو خلکو تر مینځهٔ جوړه شوې وي۔

**کثافات** :- (ک+ثا+فا+ت) ,, دکثافت ،، جمع ده۔

**کثافت** :- (ک+ثا+ف+ت) (ع ـ اس ـ مذ ، ج ـــ ونه)۱ـ د لطافت ضد دے ـ کلکوالے تنګوالے غټوالے پېړوالے پرېړوالے ۲۔پلیتي۔ګندګي۔نجاست۔ ناپاکي۔خچنتیا۔چټلے۔ناولتیا۔

**دنفوســـــ**:- ( د+ن+فو+سو) (عپ تر ـ اس ـ مذ)هغه ګندګي یا ناپاکوالے کوم چې د سا اخستو نه پېدا کېږي

**کثرت** :- (ک+ث+ر+ت) (ع۔صف) ۱۔زیاتوالے۔ډېروالے(۲) ګڼ والي فراواني۔ افراط۔زیات شمېر۔

**کثیر** :- (ک+ثي+ر) (ع۔صف) ګڼ۔زیات۔په کثرت سره۔په افراط په شمېر کښې ډېر بې شمېره۔لکه: کثیر لښکر۔

**ـــــ الاضلاع** (ـــ (ر+ل +ا+ض+لا+ع) (ع۔تر۔اس۔صف) (اقلیدس) هغه شکل چې ګڼ بازوګان یا ضلعې لري۔

**ـــــ الاقسام** (ـــ (ر+ل)ا+ق+سا+م) (ع تر ـــ صف) ډېرو قسمونو واله۔

**ـــــ الانتشار** (ـــ (ر+ل +ا+ل+ت+شا+ر) (ع تر ـ صف مذ ،مو ـــ ه) په ډېر ګڼ

شمېر کښې نشر کېدونکې په ډېرزیات تعداد کښې خورېدونکې.

**ـــــــالاولاد** (ـــ ‌(ر+ل) +او+لا+د) (ع تر.اس.صف) ډېر اولاد واله.ډېر بال بچ واله

**ـــــــالزاویا** (ـــ (ر+ل) ز+وا+یا) (ع تر.صف) (اقلیدس) هغه شکل چې ډېرې زاوئې (گټونه) لري.

**ـــــــالمعنٰي** (ـــ (ر+ل) +م+(ع) +نا) (ع تر.اس.صف) هغه لفظ چې (د یوې نه) زیاتې معنې لري.گنو معنو واله لفظ

**ـــــــالوقوع** (ـــ(ر+ل) و+قو(ع)) (ع تر.اس.صف) ډېر واقع کېدونکې.هغه کار چې بیا بیا پېښېږي.

**کثیف**: - (ک+ث+ ئ+ف) (ع.صف مذ،مو ـــ ه) ۱.پړېږ.پنډ.تنگ.درونـد ۲.پلیت گنده.خیچن.ککړ.

**کج**: - (ک+ج) (ف.صف،مذ، مو ـــ ه) کوږ.ناسم.(د درست یا نېغ ضد)

**کج ابرو**: - (ـــ اب+رو) (ف تر.صف) کږو وروځو واله.د لیندې په شان ورو ځو واله.په شعرونو کښې د معشوقې د وروځو په صفت کښې وئیلې شي.

**ـــــــادا**: - (ـــ ا+دا) (ف تر.صف) بې مروته.بې وفا.سپین سترگې.بدخویه.

**ـــــــاندېش** (ـــ ا+ن+د ے+ش) (ف تر.صف، مذ، مو ـــ ه) غلط سوچ کوونکې.اړولي سوچ واله.

**ـــــــبحث**: - (ـــ ب+ح+ئ+ث) (ف تر.مف مذ،مو ـــ ه) هغه چې په بحث کښې په اړولې خبره ننبلي.یا اړتو پړتو د لیلونه راوړي.په پړه اننښتونکې.کړندے (قندهار)

**ـــــــبین**: - (ـــ بی+ن) (ف تر.صف.مذ، مو ـــ ه) ۱.کوږ کتونکې.کوږ سترگې برنیگا ۲.خبره په کږه معنٰی کښې اخستونکې

**ـــــــپه کج کول**: - پېچ په پېچ کول.کلگوتې کول کونډلې کول

په څه شان ئې دواړه زلفې کج په کج کړې
یکباره ئې د عـالم مېنې په چـج کـړې

**ـــــــخلق**: - (ـــ خ+ل+ق) (عف تر.صف.مذ، مو ـــ ه) بد خویـه.بد خلقه.بد تهذیبه ستغ طبیعته.

**ـــــــخلقي**: - (ـــ خ+ل+قي) (عف تر.اس.مو) بد خوي.سخت خوي.بدخلقي بد تهذیبي.ستغ طبعیت لرنه.

**ـــــــخیال**: - (ـــ خ+یا+ل) (و ـــ کج اندېش) د کږو خیالونو مالک

**ـــــــدائر کېدل**: - کاږۀ او بدخویه پېښېدل.

یـه بد نیت اهــل کــرم نهٔ ارزانېږي
که یو څو کهنه فلک پرې کج دائر شي

**ـــــــرائې**: - (ـــ را+ئې) (عف تر.صف) هغه چې رائې ئې کږه یعنې درسته نهٔ وي.بې تدبیره.

**ـــــــرفتار**: - (ـــ ر+ف+تا+ر) (ف تر.صف مذ، لو ـــ ه) هغه چې رفتار ئې سم نهٔ وي.کوږ تلونکې.(عموماً شاعران ئې د اسمان دپاره استعمالوي.)

**ـــــــرو**: - ۱.کوږ تلونکې.نېغ نهٔ تلونکې کج رفتار ۲.شېطان

**ـــــــطبع**: - (ـــ ط+ب+(ع)) (عف تر.صف) کوږ طبیعت واله.کوږ مزاجه بد فطرت

**ـــــــفهم**: - (ـــ ف+ه.ه+م) اړولې پوهې والـه.هغه چې د خبرې اړولے مطلب اخلي.بې عقل.

**ـــــــفهمي**: _ (ـــ ف+ه+مي) اړولې پوهه.بې عقلي

**ـــــــمزاج**: - (ـــ م+زا+ج) (و ـــ کج طبع) کوږ طبیعت واله.

**ـــــــنهاد**: - (ـــ ن+م+ا+د) (ف تر.صف مذ، مو ـــ ه) هغه چې فطرت ئې اړولے وي بد فطرته کم ذات.کوږ فطرته

**ـــــــوالے**: - (ـــ وا+لے) (فپ تر.اس) کوږوالے.کږلېچ.

**کجاوه**: - (ک+جا+وَ) (اس.مو.ج ـــ وې) ۱.محمل.انډولۍ.امبالۍ هغه ډولۍ کومه چې په اوښ وغېره د سورلۍ د پاره کښېښودے شي.په دې کښې یوخوا بل خوا د دوه کسان کښېني چې تول به برابره وي.۲.دلرگي نه جوړشوے هغې ځیزته هم وائي کوم چې په څاروي کښېښودے شي او یو خوا بل خوا ئې د اوبو وړلو راوړلو دپاره پرې منگي کښېښودے شي.

**ـــــــکجاوه کېدل**: - یو خوا بل خوا زنگېدل.سست پست کېدل. حیرانېدل

**کجاوه**: - (ک+جا+و) (اس.موج.وې) د مېزرې وغېره نه جوړه شوې هغه لویه بوره چې مېوې دانې په کښې وړے شي.

**کجاوې**: - (ک+جا+و+ې) (اس.مو، ج) بېهوده خبرې.خوشې خبرې بکواس.

**کجبېرے**: - (ک+ج+بے+رے) (اس.مذ، ج ـــ رې) زخم بوټے.یو قسم بوټے دے.چې د پرهار د پاره پکارېږي

**کجک**: - (ک+ج+ک) (اس.مذ) د زنانهٔ د تندي هغه وېښتهٔ چې د بادام په شان ئې کونډې کړې وي.

**کجک**: - (ک+ج+ک) (اس.مذ، ج ـــ ونه) د ټوپک چقماق.د ټوپک هغه پرزه چې په هغې کارتوس لگي او اور ورلگوي قولنگ.کولنگ.کوترے.سترائیگر.

**کجک**: - (ک+ج+ک) (اس.مذ،ج ـــ ونه) د قوس (لیندې) د شکل هغه لرگے چې په مېنځ کښې ئې د ژرندې پل گرځي.

**کجک**: - (ک+ج+ک) (اس.مذ) وړوکے شان پسینه بادرنگ چې زیړ شوے وي.

**کجکل**: - (ک+ج+ک+ل) (فارسی.مذ،ج ـــ ان) فالج وهلے مفلوج هغه کس چې د فالج په وجه ئې ځینې اندامونه کاږهٔ شوې وي.

**کجکے**: - (ک+ج+کے) (اس.مذ، ج.کي) کږغښے.کړغښے.کرغښے

**کجکے**: - (ک+ج+کے) (اس.مذ،ج ـــ کي) وړوکے حوض یا چینه چې په لاره کښې وي.

**کجکے**: - (ک+ج+ک) (اس.مذ) د خولې برنې اوښکتنې هډوکے زانه.جامه.یوه وړه ښائسته مرغۍ.

**کجکے**: - (ک+ج+کے) (اس.مذ) د ځاے نوم دے.چېرته چې یو بندجوړ شوے دے.او د کجکي بند نومېږي.حوض.تالاو.

**کج گل**: - (ک+ج+گ+ل) (ق.اس.مذ، ج ـــ ونه) یو قسم تور گل دے

**کجل**: - (ک+ج+ل) (ه.اس.جم) ۱.د ډیوې تورکې کاجل ۲.د ډیوې تورکې چې په رنجو کښې ورگډ شوے وي.۳.هغه رانجهٔ چې په کچو کښې جوړ شوي وي

**کجلم**: - (ک+ج+ل) +م) (مف.مو، ج ـــ ې) توره.په رنجو توره کړې (عموماً د سترگو په صفت کښې راځي ځکه د جمعې په شکل کښې استعمالېږي)

**کج لوله**: - پېش قوضه خېنجر

**کجلې**: - (ک+ج+ل) +لې) (صف.مو،ج) په کجلوتورې کړې.په رنجو تورې کړې.

**ـــــــسترگې**: - (ـــ س+ت+ر+گې) (پ تر.اس.ج) په رنجوتورې کړې سترگې.

په کجل تورې کړې سترگې مجازاً د معشوقې ښکلې سترگې.

**کجلې**: - (ک+ج+ل) +لې) (صف) کجل سره متعلق.رنجو سره متعلق.رنجوتـه منسوب لکه: تور کجل وېښتهٔ

**کج لېچ**: - (ک+ج+لے+چ) (فپ تر.اس مذ، ج ـــ ونه) ۱.کوږوالے.کجے.خم.ناسمے ۲.د تاوېدو ځاے گټ پېر موړ.

**کج ماله**: - (ک+ج+ما+ل) (پ تر.اس.مو،ج ـــ لې) ۱.هغه لرگے چې قلبې پسې تړلې شي او پټې پرې هوارولے شي.۲.غابنور

**کجڼ**: - (ک+ج+ڼ) (اس.مذ،ج ـــ ونه) .بل) توشک.برستن.

**کجوخان**: - (ک+جو+خا+ن) (اس.مذ) خان کجو،راڼړے.د یوسفزو یو مشر.

چې د شیخ ملي نه وروستو دخپل قام مشر شۀ. یو مؤرخ هم د ۹۰۰هـ پښتنو تاریخ ولیکۀ.

**کجور**: – (ک+جو+ر) (اس. مذ) د جوارو یو قسم دے

**کجوره**: – (ک+جو+ر) (اس. مو، ج ــ رې) ۱. مشهوره مېوه. قجوره (اُر کهجور) ۲. د متیایۍ یو قسم. غوټزاخې. غونځاخې

**کجورۍ**: – (ک+جو+ر+ۍ) (اس. مو) په افرېدو کښې دیوې علاقې نوم دے.

**کجه**: – (ک+ج) (اس. مو، ج. جې) شپږکلیزه غوا، غواے

**کجي**: – (ک+جي) (ف. اس. مو) کوږوالے. خمیدګي

**کجیر**: – (ک+جي+ر) (اس. مذ، ج ــ ان) ۱. د یوغر ئینر کارغۀ نوم دے ۲. ګنجی. چې د ټپوس نه لویه وي مردار خور مارغه دے

**کجیر**: – (ک+جي+ر) (صف، مذ، مو ــ ه) ښکلے. ښائسته.

**کجیر**: – (ک+جي+ر) (صف مذ، مو ــ ه) بختور. بخره مند. ښاغلے ښک مرغه

**کجیر**: – (ک+جي+ر) (اس. مذ) یوه غټه دانه چې د مرۍ نه لاندې راخیژي.

**کجیران**: – (ک+جي+را+ن) (اس. جم) خنازیر. د یو مرض نوم دے

**کجین**: – (ک+جي+ن) (اس. مو) د تار یو قسم چې برستنې پرې ګنډلے شي

**کجۍ**: – (ک+ج+ۍ) (اس. مو) د تیر (لاړے. غشے) هغه برخه چې د سپارې په کونده کښې وي.

**کجۍ**: – (ک+ج+ۍ) د "کجے"، تانیث دے

**کجے**: – (ک+جے) (صف مذ، ج ــ جي) کږو پښو واله. هغه بني ادم یا ځناور چې پښې ئې کږې وي او په تلو کښې دا کږې وږې ږدي.

**کجے**: – (ک+جے) (اس. مذ) فلانے. نامعلومه سړے

**کجے**: – (ک+جے) (اس. مذ، ج ــ جي) چغوزے. چلغوزه (تخم کاج. د صنوبر تخم.)

**کځر**: – (ک+(د) ز+ر) (اس. مذ. ج. ونه) نیم کله ګل. نمیګړے ګل

**کځلې**: – (ک+(د)ز ز+(ل) + لې) (اس. مو، ج) خزلې خځلې. ښځلې

**کځن**: – (ک+(د) ز+ن) (اس. مذ، ج ــ ونه) برستن. نالۍ. توشک. نلائې لحاف.

**کچ**: – (ک+چ) (صف مذ، مو ــ ه) کچینیر، کچري وړوکے. ورکوټے. قامبوزے. تربوزکه، بد عملي. بدکاري. ټوقه

**کچ سترګے**: – (ک+چ ــ) (پ تر. صف. اس. مذ. ج. ګي) وړو وړو سترګو واله. چوچے چوچ سترګے.

**کچ**: – (ک+چ) (اس. مذ، ج ــ ونه) د کچ کولو اوزار. د کچ کولو پیمانه ګز. میټر. هر هغه څیز لرګے فیته وغېره چې څۀ (اوږد) څیز پرې کچ کولے شي. د اوږد والي وغېره اندازه.

ـــــ **کول**: – اوږد والے معلومول.

ـــــ **ګر**: – (ــ ګ+ر) (اس. مذ، ج ــ ان) کچ کوونکے. اوږد والے وغېره معلومونکے.

ـــــ **ګره**: – (ــ ګ+ر) (پ تر. اس. مو، ج ــ رې) د "کچ ګر"، تانیث دے.

**کچ**: – (ک+چ) (اس. مذ) د یو لوے بوټي نوم دے چې نرۍ پاڼې لري. او رنګ ئې سور بخن وي.

**کچ**: – (کُ+چ) (اس. مو) هغه غوړ چې د مستو د شاربلو نه پس راوښکلے شي مسکه.

ـــــ **اېستل– اباسل. وېستل**: – فائده منده نتیجه اېستل. لکه د دې خبرې نه څۀ کُچ وباسې.

ـــــ **لګول یا. پورې کول**: – د مطلبو اېستلو دپاره د چا بې ځایه تعریف کول. کونه غوړول. خوشامنده کول.

**کچاړه**: – (ک+چا+ړَ) (اس. مو، ج ــ ړې) کورنۍ. خاندان. کورمه. نسل

**کچالو**: – (ک+چا+لو) (ه. اس. مذ، ج ــ لان) مشهوره ترکاري چې اصلاً جرړه وي.

**د تالي ـــــ** (د+تا+لي ــ) (پ تر. اس. مذ) کچالو یو داسې سبزي ده چې د ګوتو څخه ښوئېږي. ځکه چې یوکس پرې نمرۍ (مرۍ) کښېږدي نو د تالي بل سرته وښوئېږي. او چې مخامخ سړے پرې نمرۍ ولګوي نو بیا دې طرف ته راشي. مجازاً او تشبیهاً هغه سړي ته وائي چې کله یوې ډلې ته اوړي کله بلې ډلې ته. په خپل ځاے (یا ډله کښې) ټینګ نۀ پاتې کېدونکے. بې اعتباره

**کچټ توب**: – (ک+چ+ټ+تو+ب) (اس. مذ) وړوکوالے. هلکواله ماشوموالے

**کچر**: – (ک+چ+ر) (اس. مذ، ج ــ ان) ۱. قچر مشهور باروړونکے ځناور. قاطر (د اسپې او د خر په یو ځاے کولو پیدا کېږي) ۲. بې شرمه. شهواني خبرې یا اشارې کوونکے.

**کچره**: – (ک+چ+ر+ه) (اس. مو، ج ــ ې) ۱. ګډ وډ. مخلوط. هرګجه ۲. کچه ختیکے.

**کچره**: – (ک+چ+رَ) (اس. مو، ج. رې) ۱. د "کچر"، تانیث دے ۲. بې شرمه. دبې شرمۍ خبرې یا اشارې وغېره کوونکے.

**کچرې**: – (ک+چ+رې) (اس. مو ــ چ) ۱. د کچره جمع ده ۲. د کچره اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل.

**کچرۍ**: – (ک+چ+ر+ۍ) (ه. اس. مو) ۱. یوه د ښکلي رنګ مېوه ده خوند ئې تري واو خوږ وي. عموماً غوښې د خوږېنو دپاره ئې په کټوۍ کښې اچوي. ۲. کچه خربوزه. کچه ختیکے.

**کچرۍ**: – (ک+چ+ر+ۍ) (و ــ کچهري) د عدالت ځاے. د ججانو د فېصلو کولو ځاے.

**کچري**: – (ک+چ+ري) (اس. مذ) د اوسپنې وړې وړې دانې هغه ذرې چې موټر کښې ښلي

**کچرې**: – (ک+چ+رې) (اس. مو) د زرکې یاد چرګې اواز ککړې

**کچکاسه**: – (ک+چ+کا+س) (اس. مو ج ــ سې) لویه کاشغه یا چمچه چې شربت وغېره پرې د یو لوښي نه بل لوښي کښې اچولے شي

**کچکاله**: – (ک+چ+کا+ل) (اس. مذ) مات شوے لوے خاورین لوښے.

**کچ کچ**: – (ک+چ+ک+چ) (اس. صوت) د خوشحالۍ اواز. ها ها.

**کچ کچول**: – (ک+چ+ک+چو+ل) (اس. مذ. ج) د کور لوښي لرګي. هغه لوښي چې په کور کښې استعمالېږي.

**کچکلے**: – (ک+چ+ک+لے) (اس. مذ. ج. لي) درې ګتیزه ټوټه. چې د قمیص د لاندې ګنډلے شي.

**کچکول**: – (ک+چ+کو+ل) (اس. مذ، ج ــ ونه) ۱. د فقرانو دګدا کاسه. خصوصاً هغه توره کاسه چې د سمندر د چینجو د کور (خول) نه جوړه شوې وي. عموماً زنځیر ورسره لګېدلے وي چې فقیران ئې په غاړه کښې زوړند کړي. ۲. د نارینه ؤنومونو کښې استعمالېږي ۳. د ژرندې ناوه (لودانه) چې په کښې غنم ژرندې ته ورتویږي ۴. هغه بیاض چې په کښې هر قسم غوره غوره شعرونه یا نظمونه وغېره لیکلي وي.

ـــــ **په غاړه کول**: – کاسه په غاړه کښې اچول فقیر کېدل. ملنګ کېدل.

ـــــ **په لاس کښې اخستل**: – وـ کچکول په غاړه کول

نۀ به بیا بهرام کچکول په لاس کښې واخلي

نۀ به بیا د ګـل اندامې خـریـدار شي

**کچ کول**: – (ک+چ+ک+و+ل) (مص) اوږد والے پلن والے وغېره معلومول ناپ اخستل اغشتل.

**کچکولک**: – (ک+چ+کو+ل+ک) (اس. مذ، ج ــ ونه) د ځینو مېوو لکه پسته

خسته وغیره پوستکې.

**کچکوله**: - (ک+چ+کو+ل) د کچکولک معنې ئې ده ناپ اخستونکې

**کچ گر**: - (وـ کچکو لک)

**کچل**: - (ک+چ+ل) (مص) اندازه اخستل اندازه کول. کچ کول. کامول.

**کچل**: - (ک+چ+ل) (اس. مذ. ج ـ ان) کرږ پښو واله. کچې

**کچلمه**: - (ک+چ+ل+م) (اس. مو) قتلمه. چینې یا مصري په خولهٔ کښې نیول او ترخې چائې ګوټ کول.

**کچله**: - (ک+چ+ل) (اس. مو. ج ـ لې) د ,,کچل،، تانیث دے

**کچله**: - (ک+چ+ل) (ه. اس. مو. ج ـ لې) یوه زهرجنه میوه ده. د دې په خوراک سپي مرهٔ شي. (ځکه سپو له ورکولې شي) په خاص ډېر مقدار سره بني ادم هم پرې مري په دارو ګانو کښې استعمالیږي. کلځه. کچوله. سترکنین جوهر ترې سازیږي دوائي ده.

**کچماچو**: - (ک+چ+ما+چو) (اس. مذ. ج) کاچ. ماچ. یو قسم سبزي (ساګ) دے (ع. عنب الثعلب)

**کچن**: - (ک+چ+ن) (انګ. اس. مذ. ج ـ ونه) باورچي خانه.

**کچنار یا کچنال**: - (ک+چ+نا+ر) (ک+چ+نا+ل) (ه. اس. مذ) د یوې ونې د ګلونو نوم دے. دا دوه رنګه وي. سپین او سرهٔ ئېنې خلک د دې ګلونو غوټۍ د ترکارې په طور او په غوښه کښې ا ویا بې غوښې پخوي. ګوړیال

**کچندے مرغے**: - (ک+چ+ن+د+ے+م+ر+غ+ے) (اس. مذ) یوه توره خړه شان مرغۍ

ده چې په دیوالونو وغیره کښې سوري کوي او په کښې اوسي.

**کچنو**: - (ک+چ+نو) د کچنې (جمع) اضافي او مجروري وغیره (شعر) شکل دے لکه: اے کچنو!

**کچنوټے**: - (ک+چ+نو+ټے) (اس. مذ. ج. ټي) وړوکے. ورکوټے. هلک.

**کچنۍ**: - (ک+چ+ن+ۍ) (ه. اس. مو) ۱. ګډېدونکې ښځه. ډمه. کنجرۍ. نڅئ. رقاصه. کاسیره ۲. بدکاره ښځه. بدچلنده ښځه فاحشه. ډمه

**کچنے**: - (ک+چ+نے) (اس. مذ. ج. نې. ان) وړوکے. وړکوټے. هلک

**ـــ اختر** (ـ ا+خ+ت+ر) (پ تر. اس. مذ. ج ـ کچنې اخترونه. وړوکے اختر. عیدالفطر

**کچنیتوب**: - (ک+چ+نی+لو+ب) (پ تر. اس. مذ) وړوکوالے. وړوکتوب. ورکوټوالے. هلکوالے.

**کچو**: - (ک+چو) د ,,کچ،، (جمع) اضافي او مجروي وغیره (متغیر) شکل

**په ـــ غوړول**: - فضول خرچي کول.

مور ئې د کلي شوملې غواړي

لور ئې په پاو کچو سرونه غوړینه ټپه

**له ـــ سپین** (له. س+پی+ن) ډېر زیات سپین. تک سپین.

**کچوت**: - (ک+چو+ت) (اس. صف. مذ. مو ـ ه) ۱. شوم. ممسک. ۲. پست. ذلیل.

**کچوت**: - (ک+چو+ت) (اس. مذ. ج ـ ان) رذیل. کچه. پست فطرت

**کچوټوالے**: - (ک+چو+ټ+وا+لے) (ب تر. اس. مذ) وړوکوالے. ورکوټوالے. هلکوالے.

**کچوټے**: - (ک+چو+ټے) (صف. مذ. ج ـ ټي) وړوکے. ذره.

**کچوټۍ**: - (ک+چو+ټۍ) (وـ کوچوټۍ) مؤنث کچوټۍ. پوټۍ شان

**کچور**: - (ک+چو+ر) (ه. اس. مذ) فارسي زرنباد. د کورکمان په شان د یوې ونې جرړه. په دارو کښې استعمالیږي. نر کچور.

**کچول**: - (ک+چو+ل) (اس. مذ. ج. ونه) هغه لوښے چې چیني چاپ شوے وي. چیت شوے لوښے.

**کچول**: - (ک+چو+ل) (صف. مذ. مو ـ ه) هغه سړے چې پښې ئې کږې وي کج پا. کچے کجے.

**کچول**: - (ک+چ+و+ل) (مص) اوږد والے یا پلنوالے وغیره معلومول د اوږدوالي اندازه اخستل. ناپ کول.

**کچونه**: - (ک+چ+ؤ+ن) (حص) کچ کونه. اندازه کونه. اوږ والے یا پلن والے وغیره معلومول.

**کچه**: - (ک+چ) اس مو. ج. چې) خچه (ګوته) د ټولونه وړه ګوته قچه.

**کچه**: - (ک+چ) (اس. صوت) د بیزو (اوزو) وغیره دشړلو واز کچې.

**کچه**: - (ک+چ) د یوې لوبې نوم دے. چې په ګوتو سره کولے شي. کچه لولو.

**کچه**: - (ک+چ) (صف) شرمنده. پیکه. شرمساره. خجل.

**ـــ پیکه** (ـ پي +ک) (صف) پیکه هم د کچه معنٰی لري او د تاکید د پاره راځي. یعني ډېر شرمنده. ډېر زیات کچه ډېر زیات خجل.

**ـــ کول**: - شرمنده کول. پیکه کول شرمساره کول. خجل کول.

**کچه**: - (ک+چ) (وـ کچه لولو)

**کچه**: - (ک+چ+ه) (صف) ۱. د پوخ ضد. اوم. چې پوخ نهٔ وي لکه کچه میوه یا کچه ډوډۍ وغیره. ۲. دخاورو ختیو (ابادي) ۳. بوده. کمزورے. نازک ۴. کم شوخ. پیکه یا ناپائداره (رنګ) ۵. د وخت نه وړاندې پیدا شوے (ماشوم) ۶. ناتجربه کاره ۷. غیرسرکاري لکه: کچه: کاغذ ۸. دمعیار نه کم (لکه: کچه سېر) ۹. مسوده. رف. لکه: کچه لیک ۱۰. سپک. غیراخلاقي فحش ۱۱. شرمنده ۱۲. عارضي. وقتي

**ـــ توب**: - (ـــ تو+ب) (وـ کچه والے)

**ـــ خولهٔ**: - (ـــ خ+ل) (پ تر. صف) کچه خولې واله. ماشوم چې لاد هلکوانۍ عمر ئې وي. چې بریت ئې نهٔ وي شنهٔ شوي

**ـــ ضمانت** (ـــ ض+ما+ن+ت) (عپ تر. اس. مذ. ج ـ ونه) د عدالت دطرفه ملزمان عارضي طور سره په ضمانت پرېښودل. د دې نه وروستو بیا پوخ ضمانت کولے شي)

**ـــ عقل**: - (ـــ ع+ق+ل) (عپ تر. صف) اُوم عقل. ناقص عقل. ناپوهي. ناتجربه کاري.

**ـــ عمر**: - (ـــ ع. عو+م+ر) (پ تر. صف) وړوکے عمر. کم عمر. ناپوهي. ناتجربه کاري.

**ـــ کاڼے**: - (ـــ کا+ڼ+ے) (پ تر. اس. مذ. ج. ڼي) د کچه سېر مطابق د سېر او د نور وزن کاڼي (وـ کچه سېر)

**ـــ کول**: - شرمنده کول. پیکه کول.

**ـــ کول**: - په مشین د ګنډلو نه اګاهو د جامو مختلفې برخې په اوږدو اوږدو ټکونو ګنډل. (چې بیا پرې مشین وګرځولے شي)

**ـــ کېدل، زړهٔ**: - الټې ورتلل. باقۍ ورتلل. زړهٔ خرابېدل.

**بدن ـــ کېدل**: - په بدن کښې د کوم ځاے (د زخم وغیره په وجه) نرمېدل.

**ـــ لاس**: - (ـ لا+س) (پ تر. اس. مذ) هغه کس چې لالاس ئې په کوم کار کښې پوخ شوے نهٔ وي هغه چې په کوم کار کښې ئې ښه مشق نهٔ وي شوے

**ـــ لوظ**: - (ـ لو+ظ) (وـــ کچه وعده)

**ـــ والے**: - (ـ وا+لے) (اس. مذ) کچه حالت. نا پائداره کېفیت

**کچهـرۍ**: - (ک+چـ+ر+ۍ) (ه. اس. مو) عدالت. د جج یا د مجسټریټ عدالت.

**کچه کچه**: - (ک+چَ+ک+چَ) (حمله) هغه الفاظ دي چې ماشومان د یو بل د شرمنده کولو په وخت وائي یعني کچه شه کچه شه یا کچه شوې کچه شوې.

**کچه لنګ**: - (ک+چ+ل+ن+ګ) (ق. اس. مذ) د یو مرض نوم دے چې د ډېرې ناستې او د یخنۍ نه پیدا کېږي.

**کچي**: - (ک+چي) کچه ګوته ملاوؤنه. د ماشومانو په اصطلاح کښې

دتعلقاتو د غوڅولو علامه ده (چې کته ګوته ملاوکړي نو دوستي بيا ملاو شي.او روغه شي)

ـــــ **کول**:- (د ماشومانو اصطلاح) خپل ملګري يا دوست کچې ګوتې سره خپله کچه ګوته ملاوول.دوستي پرېکول.تعلق ختمول.

**کچي** :- (ک+چي) (اس صوت) د بزو وغېره د شړلو اواز

**کچي کچي** :- (ک+چي+ک+چي) (اس صوت) د بزو وشړو اواز

**کچېلۍ** :- (ک+چے+ل+ی) (اس -مع) په سواتيانو کښې د ډېشې (حال) سواتيانو سره تعلق لري

**کڅېړ** :- (ک+(ت) ش+پ+ړ) (صف.مذ، حو.ه) لټ.سست بېکار.

**کڅخول** :- (ک+(ت) ش+خ +و+ل) (اس -مذ،ج ـونه) د باران ټوپۍ - کوچخول.

**کڅخول** :- (ک+(ت) ش+خ+ و+ل) (اس.جم) د غنمو بوس.چوکر.

**کڅخول** :- (ک+(ت) ش+خ +و+ل) (اس -مذ،ج) هغه بوس چې د يشېدلو په وخت د ديګچي سرته راشي.

**کڅخوله** :- (ک+(ت) ش+خ +و+لَ) (اس -مو،ج ـلې) هغه ټوپۍ چې د کڅ ټوکي نه جوړه شوې وي.کڅ خولۍ

**کڅکۍ** :- (ک+(ت) ش+ک+ی) (اس.مو) د ,,کڅلے،، تانيث دے

**کڅکے** :- (ک+(ت) +ش+کے) (اس.مذ،ج.کي) کوچے.کوڅے.د خر بچے

**کڅله** :- (ک+(ت) ش +لَ) (اس.مو،ج.لې) ١ـ د غشايانو سوټو ډېرے.ډېران ٢.د سپياکو انبار.ګوهاټه.

**کڅم** :- (ک+(ت)ش+تم) (اس.مذ،ج ـونه) هغه کپړه وغېره چې د ګډ وغېره ذکر پرے بندوي.چې په ماده ختے نشي.

**کڅمې**:-(ک+(ت)ش+م+(ت) ے) (اس -مذ،ج ـخي) پوس پوس کول -غلې غلې خبرې په غوږ کښې پټې خبرې

**کڅمغ** :- (ک+(ت) ش+م+غ) (ق.اس.مو) يو قسم خوږ بوټے دے.چې په شګلوړې زمکه (ازبکستان) کښې پيدا کېږي.او د شګلوړو خلک ئې پخوي.

**کڅوړه** :- (ک+(ت) +شو+ړِ) (اس -مو،ج -ړې) وړه هميانۍ -تېلۍ -وړه شان بوڅګۍ (چې عموماً -تماکو په کښې کښېښودے شي.کڅوڼه

**کڅوک** :- (ک+(ت)ش+و+ک) (اس.مذ) د يو مرض نوم دے.شرے په وجود غټې دانې را ختل شېرے سړے.

ـــــ **نيولې** :- هغه ماشوم چې شرے پرې ختلے وي.

**کڅوک** :- (ک+(ت) +سو+ک) (اس -مذ) څڅبيکے -کڅولېے - (ف -آپ - چيچک)

**کڅول** :- (ک+(ث) سو+ل) (اس) بوس يا پراړه.پروړه.

**کڅه** :- (ک+(ت) +س) (اس -مو،ج ـڅې) هغه زمکه چې د سيند يا د خوړ په غاړه د کرکروندې دپاره جوړه کړے شوې دې.

**کڅۍ** :- (ک+(ت)س+ی) (و ـ کڅه ياکڅ) د سيند د غاړې زمکه.

**کحال** :- (ک+ح+حا+ل) (ع.اس.مذ،ج ـان.مو ـه) ١ـ هغه سړے چې (د نورو) په سترګوکښې رانجهٔ پورې کوي.رانجهٔ اچوونکے.٢ـ د سترګو علاج کوونکے.د سترګو معالج حکيم

چې دلبرې ظاهر بينې شوې بدکار دے

د انصاف رانجهٔ دې واچوي کحال

**کحل** :- (ک+ح.حٔ +ل) (ع.اس.جم) رانجهٔ.کجل)

ـــــ **البصر** (ـ(ل+ل)ب+ص+ر) (ع تر.اس.جم) ١ـ د نظر د ښه کولو رانجهٔ نظ له قوت ورکوونکي رانجهٔ ٢ـ مجازاً هغه خبره يا واقعه چې د سړي سترګې پرې رڼا شي او حقيقت حال ورته معلوم شي.

ـــــ **الجواهر** (ـــ(ل+ل)ج +وا+هـ+ر) (ع تر.اس.جم) هغه رانجهٔ چې په کښې جواهر لکه مرواريد وغېره ګډ کړے شوي وي.

**کحيل** :- (ک+حی+ل) (ع.اس.صف،مذ،مو ـه) هغه سړے چې سترګې ئې په رانجو تورې کړې وي.

**کخ** :- (ک+خ) (اس.مذ) ١.خراب او تريخ څيز ٢.دماشوم غل (متيازې)

ـــــ **کول** :- د ماشوم غل (يامتيازې) کول کۍ کول -لکه: په غېږ کښې که يو ماشوم درباندې غل وکړل.

**کخ** :- (ک+خ) (اس.صورت) د ,,کخ،، په شان اواز چې يو ماشوم د کوم کار نه يا د کوم څيز د خوړلونه منع کولے شي

**کخ** :- (ک+خ) (اس -صوت) هغه اواز چې د مرۍ د خرابېدو په وجه د مرۍ نه راووځي.

**کخ** :- (ک+خ) (اس.مذ) يو قسم ډېر نرې نرې چينجي کخے.

**کخ** :- (ک+خ) (اس.مذ) يو قسم واښهٔ چې ډېر پاستهٔ وي.

**کُختے** :- (ک+خ+تے) (اس.جم) اشارې.مشهوره.مېوه.

**کخړے** :- (ک+خ+ړے) (اس.مع) د يو ستورې نوم دے

**کخ کخ** :- (ک+خ+ک+خ) (اس.صوت) (و ـ کخ) د مرۍ (خرابېدو په وجه د مرۍ

نه د کخ کخ په شان اواز رايستل.د مرۍ د کخ کخ په شان اواز راوتل.

**کخکرے / کښکرے**:- (ک+ خ+ک+رے) (و ـ کښکرے) پاتې شوے.

**کخګرے** :- (ک+خ+ګ+رے) (اس -مذ، ج ـرې) د صابون وغېره پاتې شوے برخه.

**کخے** :- (ک+خے) (اس.مذ،ج ـخې) د ورشو ساتندوے.

**کخے** :- (ک+خے) (اس -مو،ج) هغه واړه چيجنې چې (د ماشومانو په کونه کښې پېدا شي.

**کد**: - (ک+د) (و ـ کده)

**کد**:- (ک+د) (ع.اس.مذ) تکليف.زيار.محنت.رحمت (عموماً کاوش سره يو ځاے استعمالېږي)

ـــــ **خدا** :- (ـ خ+دا) (ف تر.صف) ١.د کور خاوند.د کور څښتن کوربه ٢.خاوند.څښتن.مېړهٔ ٣.د وادهٔ زلمے ۴.د ښهر مشر.ميئر

ـــــ **خدائي**:- (ـ خ+دا+ي) (ف تر.اس.لو) ١.د کور خاوند کېدنه.د کور څښتن کېدنه ٢.وادهٔ.نکاح.ښځه کول.

ـــــ **وکاوش**:- (ـ(دو) کا+و+ش) (عف تر.اس.مذ) کوښښ.سعي.لټون.جستجو.

**کداره** ـــــ (ک+دا+رَ) (ه.اس -مو) د ديپک راګ يوه راګنۍ (خاص قسم سندره) چې د ګرمۍ په موسم کښې وئيلے شي.

**کداړه** :- (ک+دا+ړ) (هند.اس.مؤ.ج.ې) ټوپ.دانګه.غورځنګ.ترپکه (هند کدوړو)

ـــــ **وهل**: ټوپو نه وهل.ترپې وهل.

**کدال** :- (ک+دا+ل) (ه.اس.مذ، ج ـونه) د زمکې د کنستلو يوه اله.

**کدالۍ** :- (ک+دا+ل+ی) (اس.مو) د کدال تصغير دے.وړوکے کدال د زمکې کنستلو وړه اله

**کدائے** :- (ک+دا+ئے) (اس.مذ) د لوے اوږ قميص په شان چغه ګاون.

**کداے** :- (ک+دا+ئے) (اس.مذ) د چيندخو يوقسم دے

**کدر** :- (ک+د+ر) (ع.صف) په ختو وغېره ککړ.ګنده.تت خړ.

**کدو** :- (ک+(د) +دو) ١ـ مشهوره ترکاري -چې بوټے ئې ځېلۍ واله وي - (مسلمان ئې ډېر قدر کوي.ځکه چې د حضور پاک صلعم دا ډېر خوښ وهٔ) ٢ـ د شرابو لوښے.بوتل وغېره (پخوا به غونډ يا اوږد کدو په مېنځ کښې تش کړے شهٔ او د وچولو نه پس به په کار راوستے شه) ٣.مجازاً بې مغزو.کم عقل.غبي.

**ـــــتشول دمیو** :- دشرابو بوتل یا لوښې خالي کول.

چې بدمست په دې مجلس کښې هغه نهٔ یم

کـه کـدو د مـې وتش کـړم سبو هم لا

**ـــــدانه** :- (ـــدا+ن) (ف تر اس ـمؤ ـ ج ــنې) د ګېډې یو قسم چینجې چې شکل ئې د کدو دتخم په شان وي.

**ـــــدمیو** :- دشرابو لوښې.

**ـــــسرے**:- (ــس + رے) (صف،مذ ،ح ـري) هغـه کس چې سر ئې دکدو په شان (لوے) وي.مجازاً بې مغزه کم عقل.

**ـــــکش** :- (ـک +ش) (ف تر ـاس ـمذ) یوه الـه ده چې تېرهٔ غاښې او ورسره جخت سوري لري.چې کدو (وغېره) سبزي پرې مړلے شي.نو نرې نرې مېنچې غوندې ترې جوړېږي.

**کدو سرــــ کول** :- سرخوړول.ډېرنصیحت وغېره کول.په پوهولو ځان ستړے کول.

**کـدورت** :- (ک+دو+ر+ت) (ع ـاس ـمذ ،ح ــونه) ۱ـحیـران والـے ـخـړوالے ـ خیچن والے.۲ـخیـره ـخړه ـدوړه ـغبـار ۳ـمجازاً پـه زړهٔ کښې خیـره ـ خفګان رنجش.۴ـمجازاً بغض.دښمني.عداوت

**کدوړے** :- (ک+دو+ړے) (اس ـمذ ،ج ــړي) وړوکے کدو.

**کدوزړے** :- (ک+دو+ز+ړے) (اس ـمذ ،ج ــړي) ۱ـد کدو زړے د کدو تخم ۲ـد ګېډې یو قسم چینجي چې شکل ئې د کدو د زړي په شان وي.

**کده** :- (ک+د) (ف ـاس ـمؤ ،ج ــدې) کور ـخانه ـځاے ـمقام (عموماً پـه مرکباتو کښې په طور د لاحقې راځي.

**آتش ـــــ** :- (آ+ت+ش ـ) (ف تر ـاس ـمو، ج ــدې) هغـه ځاے چې پـه کښې اور بلولے شي ـد پارسیانو (آتش پرستو) دعبادت ځاے چېرتـه چې مـدام اوربل ساتلے شي.

**غـمـــــ** :- (غ+م ـــــ) (عف تـر ـاس ـمؤـج ـې) د غـم ځـاے ـد غـم کـور (عموماً دخپل کور د پاره وئیلے شي)

**ماتمـــــ** :- (ما+ت+م ــ) (ف تر ـاس مؤ ج ـدې) هغـه ځاے چېرتـه چې پـه مړي باندې ماتم کولے شي.مجازاً د خفګان او د غم ځاے.

**مےـــــ** :- (مے ـ) (ف تر ـاس ـمو ج ــدې) شراب خانه.

**کګېبنه** :- (ک+ډ+ب+نَ) (اس ـمو ،ج ــنې) د "کډبه" ، تانیث

**کډبنے** :- (ک+ډ+ب+نے) (اس ـمذ ،ج ــي) وـــ کډبه جمع د کډبنه

**کډبه** :- (ک+ډ+ب) (اس ـمذ) خانه بدوش ـکډه په سر

**کډله** :- (ک+ډ+ل) (اس ـمذ ،ج ــونه) کوډله ـجونګړه ـډوغله غار

**کډن** :- (ک+ډ+ن) (صف،مذ ،موـــه) کډې واله ـمجازاً بال بچ واله بال بچدار

**کډوال** :- (ک+ډ+وا+ل) (پ تر ـاس مذ ،ج ــان) ۱ـکډې واله ـمجازاً بال بچ واله بال بچ دار.۲ـخانه بدوش ـکډه په سر

**کډه** :- (ک+ډ) (اس ـمو ،ج ــډې) ۱ـد کور سامان ـدکور اسباب لکه : ابې دلې کډه ئې په سوات (متل)۲ـکور والـه ـښځه ۳ـکـوچ ـسره د سامانه روانېدنه

**ـــــاړول** :- کډه د اوښانو خرو وغېره نه ښکته کوزول ـسفر ختمـول مجازاً پـه یو ځاے کښې استوګنه نیول د سفر نه پس په یو ځاے کښې قیام کول.

**ـــــباربدل** :- د خانه بدوشو خلکو د یو ځاے نه بـل ځاے تـه د تللو تیـارے کول (خپلې کډې وغېره په اوښانو کنبېښودل)

**ـــــبهرغورزول** :- د چاد کور سامان د کورنـه بهـر غـورزول مجازاً د کـوره شړل ـد کوره اېستل.

**ـــــپورته کول** :- د کوچي خلکو د یو ځاے نه بـل ځاے تـه د تللو تیـارے کول ـ کوچ کول.

**ـــــپه سـرول (ور،در،دا)** :- د کـور اسباب د چا پـه سر کښېښـودل مجازاً د کوره اېستل ـد کوره شړل.

**ـــــپه سرے** (ـــب+س+رے) (پ تر ـصف ـاس ، ج ــري) خانه بدوش

**ـــــکوډه** :- (ـــ کو+ډ) (پ تر ـاس ـمو) د کور اسباب او څیزونه ډانګ ډېلې ـ لټ کوپړې

**ـــــکول** :- د یو ځاے نه سره د کور د مال اسباب او بال بچ بل ځاے تـه تلل ـ د یو ځاے نه بل ځاے ته (سره د کډې) کوچ کول.

**پهـــــ تلل** :- سره د کډې او باله بچه تلل. مستقل طور سره تلل.

**پهـــــ راتلل** :- سره د کډې او باله بچه راتلل مستقل طور سره راتلل

**دلړمـــــ** :- (د+ل+ړ+م ـــ) (پ تر ـاس ـمو) سپکه کډه ـدکور لږ او مختصر سامان لکه : د لړم کډه څهٔ وي یوه لکۍ چې په ځان ئې راواړوي (او ځي) (متل)

**کډهل** :- (ک+ډ+د) +ه+ل) (اس ـمذ ،ج ــونه) ډوغل ـکنده ـکوندرے ګرهچ

**کـډهل** :- (ک+ډ+ه+ل) (اس ـمـذ ،ج ـــونـه) هغـه نغـاره یـا لـوے ډوغـل چې ګلکاران په کښې مساله جوړوي ـګانې.

**کډهل** :- (ک+ډ+ه+ل) (اس ـمذ ،ج ــونه) هغه ژوره (جوره) زمکـه چې د شـولو دکرلو دپاره تیاره کړے شوې وي.

**کډهل** :- (ک+ډ+ه+ل) (اس ـمذ ، ج ــونه) ځاو ـهغـه کوهے شان چې پـه صحرا کښې اُوګنې او بیا په کښې ترکاري محفوظه ساتي.

**کـډې** :- (ک+ډ+ې) (اس ـمـو ج ـــ ګـانې) ۱ـد جولاګـانو د کـار کارګـاه ۲ـهغه ډوغل شان چې جوله د کپړې د اودلو په وخت په کښې پښې زوړندوي ۳ـد جولاد تنستې پایه.

**ـــــجوړول** :- مجازاً یو ځاے ته بیا بیا (تلل) راتلل ـ ۲ـپه ناسته کښې پښې وړاندې وروستو خوځول.

**کډې** :- (ک+ډ+ې) (اس ـمو) جونګړه ـکوډله ـډېره.

**کډې** :- (ک+ډې) ۱ـد کډه جمع ده ۲ـد کډه اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل.

**ـــــباربدل** :- (وـــ کډه باربدل)

**ـــــتل** :- د یو ځاے نه بل ځاے ته سره د خپلې کډې او وړو زړو کوچ کول.

**ـــــراتلل** :- د خانه بدوشو خلکو په اوښانو وغېره بار کړې کډې راتلل.

**کډے** :- (ک+ډے) (اس ـمذ ،ج ــډي) ډوغل ـکنده.

**کډے** :- (ک+ډے) (اس ـمذج ــډي) هغه ځاے چېرتـه چې د غسـل خانې یـا باورچي خانې ګنده اوبهٔ جمع کېږي ـمردار ډنډ خندک.

**کذا** :- (ک+ذا) (ع ـتف) ۱ـدا شان ـپه دې ډول ـپه دغـه رنګ ۲ـد کـوم عبارت د نقل کولو په وخت چې کوم مشکوک (یاغلط) لفظ مخې ته راشي نونقل کوونکے دغه لفظ عموماً هغه شان مشکوک یا غلط ولیکي ـخو ورسره په حاشیه کښې ورتـه کذا ولیکي مراد ترې دا وي چې دا لفظ پـه اصل کتاب کښې همدغه شان لیکلے شوے دے.

**کذاب** :- (ک+ذ+ذا+ب) (ع ـصف ـمذ ، موــه) ډېر دروغـژن ، ډېر دروغجن ـد مبالغې صیغه ده.

**کـر** :- (ک+ر) (اس ـصوت) ۱ـد ټوکي یـا د جـالې د شلېدو اواز ۲ـپـه کاغـذ باندې د قلم د چلېدو اواز ـکش ـکشار

**کر** :- (ک+ر) (اس ـمذ) د کرل مصدر نه حاصل مصدر دے کرونده ـکرنه

**کر** :- (ک+ر) (ف ـصف ،مذ ،موــه) کوڼ ـپه غوږونو درونډ.

**کـر** :- (ک+ر) (ع ـاس ـمذ) رعب داب ـشان شوکت ـحمله عموماً فر سره یو ځاے راځي ـیعني کروفتر.

**ـــــوفر** :- (ـــ (رو) +ف+ر) (ع تر ـصف ـ) حمله کول او په شاکېدل یا تښتېدل خو په محاوره کښې شان وشوکت ـدرز دروز رعب داب دبدبه په معنٰی

کښې راځي.

**کرا**: - (ک+را) (اس.صوت) د کرکر اواز. کرهار.

**کراب**: - (ک+را+ب) (اس.مذ) د غوي او غوا ګانو يو مشهور مرض دے تبک. تبخ. طبق

**کراپندل**: - (ک+را+پ+ن+د) (اس.مذ،ج ـونه) يو غرئيزه ونه. چې لنډ لنډ شاخونه لري. چې غوره جاوله (ژاوله) ترې حاصلېږي. کرپند.

**کرات**: - (ک+ر+ا+ت) (ع.اس.مذ) د ,,کرت،، جمع ده. واره. ځله ځلې

ـــــ**مرات**: - (ـــم+(د) +را+ت) مرات تابع مهمل دے. د تاکيد د پاره راځي. يعني ډېر ډېر ځله. بيا بيا. په تکرار سره.

**کراچ**: - (ک+را+چ) (اس.مذ،ج ـونه) هغه چمه (لويه لوټه) چې په بيلچې سره د زمکې نه جدا کړے شي.

**کراچۍ**: - (ک+را+چ+ۍ) (اس.مع) د پاکستان د ټولو نه لوے ښهر چې په اول سر کښې د دې ملک دارالحکومت ؤ. د سمندر په غاړه اباد دے. اهمه هوائي اډه لري.

**کراچے**: - (ک+را+چے) (و ـ کراچ)

**کراڅه**: - (ک+را+(ت)س) (اس.مو.ج ـ څې) د زخم يتړے. پړچوخے. سکوے

ـــــ**نيول**: - د زخم د پاسه تيرکے جوړېدل پړڅ نيول. کره نيول خيره نيول

**کرار**: - (ک+ر+ا+ر) (ع.صف مذ،موـه) بيا بيا حمله کوونکے. زور داره حمله (حملې) کوونکے د شېرد خدا ے حضرت علي کرم الله وجهه لقب دے.

**حېدر**ـــــ: - (حے+د+رـــ) (اس.مع) د حضرت علی کرم الله وجهه لقب دے. ځکه چې هغوي د خپل قوت. شجاعت او مړانې په وجه کفار لرې زغلول. لکه چې زمرے د ځنګل ځناوران زغلوي.

**کراره**: - (ک+را+ر) (اس.مو) خرخره د اس د وېښتو خرئيلو اله.

**اس**ـــــ **کول**: - اس خرخره کول. په اس باندې خرخره مږل.

**کراړ**: - (ک+را+ړ) (اس.مذ،ج ـونه) يو ازغن (اغزن) غرئيز بوټے دے

**کراړ**: - (ک+را+ړ)(صف.مذ،ه ـه) سخت. کلک. محکم. زړور

**کراړ**: - (ک.کی+را +ړ) (اس.مذ،ج ـان) ۱. هندو. ټګ

هېڅ اخلاص مې بې لباسه ترې بيا نه موند

يار مــې ټــګ د بنګالــيؤ نا کراړشــو (ج.م)

**کراړک**: - (ک+را+ړ+ک) (اس.مذ) مالګين پنير.

**کراړه**: - (ک+را+ړ) (اس.مو) ۱. کاڼيزه زمکه. سنګلاخه زمکه. سخته زمکه. کرېړه ۲. هغه زمکه چې په کښې قرت قُت کاڼي ډېر وي قرت کاڼو واله زمکه. ۳. سخت قرت. يا وقت کاڼے

**کراړه**: - (ک+را+ړ) (اس.مو) قروت. وُچ تريو پنير

**کراز**: - (ک+را+ز) (اس.مذ،ج ـونه) کوريز د مارغانو مرداري بنې غورځونه.

**کرازند**: - (ک+را+ز+ن+د) (و.کراړند)

**کرازې**: - (ک+را+زې) (اس.مو،ج) بې اصل خبرې بې بنياده خبرې ارتاويزې. برغزووې. دروغ خبرې.

ـــــ**کول**: - داسې خبرې کول چې څۀ اصل بنياد ئې نۀ وي.

**کراړند**: - (ک+را+ګ/ ژ+ن+د) (صف.مذ،موـه) هغه مريض چې د بد برهېزۍ له کبله ئې مرض اوږد سخت شي. کراغند.

ـــــ**والے**: - (ـــوا+لے) (و ـ کراړندتيا)

**کراړندتيا**: - (ک+را+ګ/ ژ+ن+د+ت+يا) (اس.مذ) د بد پرهېزۍ له کبله د مرض اوږدېدنه او خرابېدنه.

**کراړنده**: - (ک+را+ګ/ ژ+ن+دَ) (اس.مو.ج.دې) د کراړند تانيث دے.

**کراس**: - (ک+را+س) (انګ.اس.مذ،ج ـونه) صليب. غرغره د عيسائيانو مذهبي نشان.

ـــــ**کول**: - د سړک وغيره نه بلې غاړې ته تلل. ور اوړېدل.

**رېډ**ـــــ: - (ر+ډ ـــ) (انګ تر.اس.مذ) سور صليب. د هغې بين الاقوامي جماعت نشان او نوم چې د جنګي زخميانو ابتدائي امداد وغېره کوي او دغه رنګې نورو حادثاتو کښې د زخميانو او د حادثې وهلو خلکو امداد کوي.

**کراسپه**: - (ک+را+س+پَ) (اس.مو) د ښاروي د پاسه د بار د تړلو يوه خاص طريقه.

ـــــ**کول**: - د ښاروي دپاسه په يو خاص ډول بار تړل.

**کراست**: - (ک+را+س+ت) (اس.مذ) نمده. لمسے. لمڅے

**کراستګر**: - (ک+را+س+ت+ګ+ر) (اس صف.مذ،ـــان، موـه) نمدے جوړوونکے. نمده ساز

**کراسته**: - (ک+را+س+ت) (اس.مو.ج.ې) نمده. لمڅه. نمڅيے.

**کراسته**: - (ک+را+س+ت) (صف، مو) داسې څيز چې لاپوره وچ شوے نۀ وي. او مېده کېږي نه.

ـــــ**کېدل**: - نيم وچے کېدل. نۀ وچېدل (چې اُوړۀ کېدے نۀ شي)

**کراستے**: - (ک+را+س+تے) ۱ـ د کراسته جمع ده ۲ـ د کراسته اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل لکه: د کراستے ملابند.

ـــــ**کېدل**: - د لاس پښو د ډېر يا سخت کار په وجه سختېدل او ستختېدل.

**کراسګر**: - (ک+را+س+ک+ر) (و ـ کراستګر) نمده ساز

**کراسګۍ**: - (ک+را+س+ګ+ۍ) (اس.مو) يو قسم سبزي ده. چې د خوشبوې د پاره په کټوۍ کښې اچولے شي.

**کرانښ**: - (ک+را+خ/ش) (اس.مذ) يو قسم ګياه ده.

**کرانښه**: - (ک +دا+خَ/شَ) (اس.مو.ج ـښې) کاږ. دوتر. کتاب.

**کـراغ**: - (ک+را+غ) (صف، مذ، موـــه) هغه کس چې سترګې ئې په کاسو کښې د ننه ننوتې وي

ـــــ**سترګے**: - (ـس +ت+ر+ګے) (ب تر.اس.ج ګې) هغه چې سترګې ئې په کاسو کښې د ننه ننوتې وي.

**کـراغ**: - (ک+را+غ) (پ.اس.ز.ج: کراغونه) کارغۀ. مشهور مارغۀ چې د هوښيارتيا د پاره ضرب المثل دے.

**کراغند**: - (ک+را+غ+ن+د) (و ـ کراړند)

**کراغې**: - (ک+را+غې) د کراغه جمع ده.

ـــــ**سترګې**: - (ـــس+ت+ر+ګې) هغه سترګې چې په کاسو کښې د ننه ننوتې وي.

**کراکرې**: - (ک+را+ک+رې) (انګ.اس جم) د خوراک ښناک چيني لوښي

**کراکش**: - (ک+را+ک+ش)(پ.ف تر.اس.مذ،موـه) ۱. په کرايه باندې اوښان وغېره چلوونکے کرايه ګر. په مزدورۍ باندې مال (په اوښ خر يا ګاډي) وړونکے راوړونکے. ۲ـ د کور يا د عمارت کرايه اخيستونکے

**کراکښ**: - (ک+را+ک+خ/ ش) (و ـ کراکش)

**کراکندے**: - (ک+را+ک+ن+دے)(اس.صف.مذ، ج ـي) کم ظرف. تنګ حوصله.

**کـرام**: - (ک+را+م) (ع.اس.ج) د کريم جمع ده. لوے. عزت واله خلک. سخيان.

ـــــ**کاتبين**: - په ښې ناستې د انسان احوال ليکونکې فرښتې

د غفلت نسې په ورځ وشپه جارباسې

خومـنت به په کـراماً کاتبين ړدې

**صحاب**ـــــ: - (ص+حا+بـــ) (عف تر.اس.ج) غرتمند ملګرې يا دوستان. د حضور پاک صلی الله عليه وسلم صحابيان.

**کرامات** :- (ک.ک+را+ما+ت) (ع.اس.ج) ۱ـد کرامت جمع ده.بزرګي.لوے والے.عزتونه. ۲.کرشمې.خرق عادت کارونه.

**کراماتي** :- (ک+را+ما+تي) (وــ کرامات واله.)

**کراماالکاتبین** (ک+ر+ا+م+ل+کا+ت+بی+ن) (ع تر.اس.تتینه) هغه دوه فرښتې چې پرهر وخت د هر بني ادم په اُوږو ناستې وي.او د هغۀ هر ښۀ او بد عمل لیکي.کوم فرښته چې په ښۍ اُوږه ناسته وي هغه نېکۍ لیکي او کومه چې په ګڅه (کینړه) اوږه ناسته وي.هغه بدۍ او ګناهونه لیکي.۲ـ تشبیها .د حکومت هغه پټ کارکنان (سی آئي ډي واله) څوک چې په جلسو وغېره کښې د تقریر کوونکي تقریر په لیک کښې راولي.

**کرامت** :- (ک+را+م+ت) (ع.اس.مذ،ج ــونه.کرامات) ۱ـبزرګي.لوے والے.فضلیت ۲ـد عام عادت نه خلاف کار خرق عادت کار.تصرف.اعجاز.د جادو په مقابله کښې راځي.عاجز کوونکے عجیبه کار چې د عام عادت نه خلاف وي.معجزه ښودل د پېغمبرانو کار دے خو د پیغمبر نه علاوه بل کوم بزرګ داسې کار وښائي نو کرامت بللے شي.۳ـد نارینهٔ په نومونو کښې استعمالېږي ۴ـکمال.خوبي.نیتجه.وجه لکه: دا خو ټول د زړو کرامت دے.

**ـــــښودل** :- د عام عادت نه خلاف څۀ کار ښودل خرق عادت کار ښودل.په فطرت کښې تعرف کول.

**ـــــمنل** :- د کوم بزرګ د لاسه د خرق عادت د کار په ښکاره کېدلو عقیده لرل ،دا عقیده لرل.چې بزرګان اولیاء الله په فطرت کښې تصرف لري.

**کرامتي** :- (ک+را+م+تي) (عپ تر.اس.ج.ان) کرامت واله.هغه سړے چې مافوق الفطرت کارونه کوي.عجیبه کارونه کوونکے.

**کران** :- (ک+را+ن) (ف.اس.مذ) ۱ـغاړه.ژۍ (جی) څنډه ۲ـحد.انتها.

**بې ــــ** :- د حد نه زیاته.بې انتها

**کرانچۍ**:- (ک+را+ن+چ+ۍ) (ه.اس.مو) ۱ـد وسپنې هغه رېړه.په کوم کښې چې فوځیان مختلف قسمه سامان وړي راوړي .دا عموماً په کچرو راښکے شي.۲ـد لرګو تختو نه جوړشوے د دوو (یا د څلورو)پایو ګاډے چې مال پرې اوړے راوړے شي.دا په غوایانو په اوښانو په خرو،راښکے شي.رېړه.

**کرانړے** :- (ک+را+ن+ړے) (اس.مذ،ج ــړي) زړه کپړه (زړوکے) چې زنانه د غوامېښو دلوشلو په وخت په خپلو زنګنونو کښېږدي.

**کران کران** :- (ک+را+ن+ک+را+ن) (اس صوت) د کارغۀ په شان آواز.

**کرانے** :- (ک+را+نے) (اس.مذ،ج ــني) د ماڼ ګانو لاړښو دونکے چې کشتۍ ئې ګټ سره ونۀ جنګېږي.

**کراول** :- (ک+را+ؤ+ل) (اس.مذ،ج ــونه) هغه لرګے .چې د جغ (ژغ) مېنځ کښې د جداوالي دپاره ورکولے شي.کرول.

**کراول** :- (ک+را+و+ل) (اس.مو) سرواندے.د لښکر نه وړاندې تلونکے.هراول دسته

**کراوے** :- (ک+را+وے) (اس.مذ،ج ــي) هغه کس چې بل څوک د خپل کار دپاره مقرر کړي.

**کراوے** :- (ک+را+وے) (اس.مذ،ج ــوي) د پټي یا د فصل وغېره محافظ.دهقان.پېش کار.کار چلوونکے.کار روانوونکے ۲ـسرپرست.

**کراهت** :- (ک+را+ه+ت) (ع.اس.مذ) کرکه.نفرت.نۀ خوښونه.ویزاري.ناخوښي.

**ـــــانګېز** (ــا+ن+ګے+ز) (عف تر.صف.مذ، موــه)کراهت پېدا کوونکے.کرکه پېدا کوونکے.هغه څیزیا کار چې کرکه ورځنې کېږي.

**کراهته** :- (ک+را+ه+ت+ن) (ع.تف) د کرکې په طور.د نفرت په انداز.

**کراه** :- (ک+را+ه) (عپ اس.مو،ج ــهې) کرایه.باړه

**کراهیت** :- (ک+را+هی+ي+ت) (وــ کراهت)

**کرائي** :- (ک+را+ي) (اس.مو) کرایه.کراهه.

**کرایه** :- (ک+را+يَ) (ف.اس ،مو ج ــې) اُجرت.مزدوري.اجاره.کراهه.باړه هغه رقم کوم چې د چا څۀ څیز(لکه خر.اوښ ګاډے یا کور بنګله وغېره) درستولو په بدله کښې ورکولے شي.

**کرایه** :- (ک+را+ی) (اس.موـح ــې) کرایه.کراهه.دکوم څیز د استعمال عوض.په لارۍ ګاډې جهاز وغېره کښې د سفر کولو بدل.

**ـــــدار** :- (ــدا+ر) (ف تر.اس.صف ،مذ ،ج ـان موــه)هغه کس چا چې کوم څیز (عموماً کور) په کرایه اخستے وي او په خپل استعمال کښې ئې راولي.کراهه دار.باړې دار.

**کرائې** :- (ک+را+ئې) د کرایه اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل دے.

**ـــــټټو**:- ۱ـهغه ټټو چې د بار وړلو دپاره په کرایه اخستے شوے وي. ۲ـمجازاً هغه سړے چې د پېسو د پاره د بل د پاره (خراب) کار یا کارونه کوي

**کرب** :- (ک+ر+ب) (ع.اس.مذ،ج ــونه) غم.اندوه.دُوک.

**کرباس** :- (ک+ر+با+س) (اس.جم) ۱ـسپنې ۲ـغټه کپړه.خامتا.چیټ

**کرباسي** :- (ک+ر+با+سي) (صف) ۱ـهغه چې کرباس سره تعلق لري.کرباس ته منسوب ۲ـد کرباس نه جوړشوے ۳ـد کرباس کپړه خرڅوونکے.

**کرباڼه** :- (ک+ر+با+ن+ړ+ن) (اس.صف) تور ځلکېدونکے رنګ واله څیز.یو تور بوټے.

**کربړک** :- (ک+ر+ب+ړ+ک) (اس.مذ) (و.کربوړک)

**کربز** :- (ک+ر+ب+ز) (اس.مذ) ډغ.ډانډت کوونکے.

**کربسکه** :- (ک+ر+ب+س+کَ) (اس.مو) پُنبه

**کربسکے** :- (ک+ر+ب+س+کے) (اس.مذ ،ج.کي) پنبه.مالوچ

**کربشا** :- (ک+ر+ب+ش) (اس .مذ) یو وړوکے ځناور دے .چې کم قیمته پوست لري.د دې نه پوستینونه جوړېږي.پشورمه کبرغان.(ف.بترغان)

**کربک** :- (ک+ر+ب+ک) (وـ کربوړک).کربوړے

**کربلا** :- (ک+ر+ب+لا) (اس.مع.مو) ۱ـد کرب او د بلا مرکب دے.یعني هغه ځاے چرته چې غم او افت وي .د هغې بیابان نوم دے چېرته چې حضرت امام حسېن رضی الله عنه سره د خپلو خپلوانو او ملګرو شهید کړے شوے وو.۲ـتشبهاً هغه ځاے چېرته چې اوبۀ نۀ موندے کېږي.یا د اوبو سختي وي.

**ـــــمعلي** (ــم+ع+ل+لا) (ع تر.اس مو) د کربلا مېدان ته د ادب او تعظیم د پاره وائي.

**کربلائي** :- (ک+ر+ب+لا+ئي) (صف) ۱ـکربلا سره تعلق لرونکے.کربلا ته منسوب.۲ـد کربلا اوسېدونکے. ۳ـهغه کس چا چې د کربلا زیارت کړے وي ۴ـیو قسم جامه.

**کربوړک** :- (ک+ر+بو+ړ+ک) (اس.مذ) غرئیز کربوړے.غرئینره چرمښکۍ

**کربوړه** :- (ک+ر+بو+ړ) (و.کربوړے)

**کربوړے** :- (ک+ر+بو+ړے) (اس .مذ) غرئیزه چرمښکۍ چې څنګه غر هغسې کربوړے (متل)

**کربوسکه** :- (ک+ر+بو+س+ک) (اس.مو،ج ــکې) مالوچ.پنبه

د غفلت کربوسکې وباسه له غوږه
یو څو پنده درته وایم وئې نغوره

**کربوشا**:- (ک+ر+بو+شا) (وــ کربشا) وړوکے ځناور

**کربونه** :- (ک+ر+بو+نَ) (اس.مو،ج.نې) خښتګ

**کربیټ** :- (ک+ر+بې+ټ) (صف.مذ، موــه)کړوپښو واله.کجے.هغه سړے

چې کوړ ووړ ځي۔

**کربېزن** :- (ک+ز+بې+ز+ن) (صف مذ ، مو ــ ه) هغه چې پوزه ئې هر وخت بهېږي قرمبزن پهوار ګنده

**کربېزنه** :- (ک+ر+بې+ز+ن) (صف۔مو، ج۔نې) د کربېزن تانيث دے۔د کور لور خور کربېزنه وي (متل)

**کربېزي** :- (ک+ر+بې+زي) (اس ۔ جم) د پوزې اوبۀ۔قن۔ګرينګ۔

**کربېکے** :- (ک+ر+بې+ک+ے) (اس۔مذ ، ج ــ کي) د پښې لړګے۔د پومبي لړګے

**کرپ**:- (ک+ر+پ) (اس ۔صوت) دکومې مېوې وغېره په غاښونو کښې د چقولو اواز ګاځړې په خرپ دې يم په خوند دې نۀ يم۔(متل)

**ــــ کرپ** :- دکوم څيزپه غاښونو کښې د چقلو اواز۔

**ــــ کرپ کول** :- دکومې مېوې وغېره د خوړلو په وخت د کرپ کرپ اواز اېستل۔

**ــــــ کروپ** :- (ـــ ک+رو+پ) (اس۔صوت) د کرپ کرپ په شان اواز (کروپ د تاکيد دپاره راځي)

**کرپا** :- (ک+ر+پا) (اس۔صوت ) پرله پسې دکرپ کرپ اواز

**کرپار** :- (ک+ر+پا+رے) (اس ۔صوت) د کرپ کرپ مسلسل آواز۔

**کراکنډه** :- (ک+را+ک+ن+ډ) (صف) کمزورے ضعيف۔کم قوته۔کم طاقته۔

**کراګنده يا کراګندے** :- (ک+را+ګ+ن+د ے)(صف ۔اس ۔مذ ،ج ــ دي) هغه سړے چې د ناجوړتيا نه ښۀ شوے وي۔خو لا خپل پوره صحت ته نۀ وي رسېدلے۔

**کرپان** :- (ک+ر+پا+ن) (ه ۔اس ۔مذ ، ج ۔ونه) وړه توره يا لويه چاړه (عموماًسکهان او هندوان ئې استعما لوي۔)

**کرپتاوه** :- (ک+ر+پ+تا+وَ) (اس۔مو ،ج ـ وې) د کوهي بوقه۔بوکه۔

**کرپړه** :- (ک+ر+پ+ړ) (وــ کرپالې)

**کرپړه** :- (ک+ر+پ+ړ) (اس۔مو،ج ــ ړې) (وــ کرپوله )

**کرپشن** :- (ک+ر+ر+پ+ش+ن) (انګ اس ۔مذ) فساد ۔خيرن توب ۔ککړتوب- رشوت۔

**کرپل** :- (ک+ر+پ+ل) (وــ کرپالې)

**کرپله** :- (ک+ر+پ+لَ) (اس۔مو،ج ـ لې) يو قسم سبزي ده۔

**کرپندے** :- (ک+ر+پ+ن+د ے) (اس۔مذ ،ج ــ ي) ۱ـ هرهغه څيزچې دخوراک په وخت ئې دغا ښونو نه د کرپ کرپ اواز پيدا کېږي۔

**کرپول** :- (ک+ر+پ+و+ل) (مص) د کوم داسې سخت څيز خوړل ۔چې په غاښونو کښې د مېده کولو په وخت د کرپ کرپ اواز راځي۔

**کرپوله** :- (ک+ر+پو+ل) (اس۔مو) کوپړه۔کرپړه۔د دارو په طور استعمالېږي۔

**کرپونه** :- (ک+ر+پ+ؤ+ن) (محص) په خوراک کښې د کرپ کرپ اواز اېستنه په کرپ کرپ سره خوړنه۔

**کرپوونکے** :- (ک+ر+پ+و+ن+کے) (اس۔فا مذ ، ج ــ کي) کوم سخت شان څيز خوړونکے چې د خوراک په وخت ترې د کرپ کرپ اواز راځي۔په کرپ کرپ سره خوړونکے ۔په خوراک کښې د کوم څيز نه د کرپ کرپ اواز اېستونکے

**کرپهار** :- (ک+ر+پ+ها+ر) (وــ کرپا)

**کرپے** :- (ک+ر+پې) ۱۔(وــ کرپا) ۲۔کرپندے

**کرپېدل** :- (ک+ر+پې +د+ل) (مص) په خوراک کښې دکرپ کرپ اواز کېدل۔

**کرپېدنه** :- (ک+ر+پې +د+ن) دکرپ کرپ اواز پيدا کونه ۔د خوراک په وخت په غاښونو د کرپ کرپ اواز اېستنه۔

**کرپېدونکے** :- (ک+ر+پې +دو+ن+کے) (اس ۔فا مذ ، ج ــ کي) هغه څيز چې دخوراک په وخت د کرپ کرپ اواز کوي۔

**کرت** :- (ک+ر+ت) (اس۔جم) قرت۔قروت۔کروت۔وُچ پنير)

**ـــــ غوړي** (ـــ غ+و+ړي) (پ تر۔اس۔ج) وُچ پنيرد غوړو نه جوړه شوې يو قسم خوراکه۔

**ـــ اېستل ـــ وېستل ـــ اباسل ـــ وباسل** :-۱ـ وچ پنير وباسل ۲ـ مجازاً د بحث وغېره نه څۀ فائده منده نتيجه وباسل (عموماً د نتيجې په طور استعمالېږي۔)

**کرت** :- (ک+ر+ت) (صف) بېخي۔سکټ۔بالکل۔

**ــــــ انکاري کېدل**: بېخي انکار کول۔بالکل انکار کول يا منکرېدل۔

**کرت** :- (ک+ر+ت) (اس۔مذ ج ــ ه۔کرات) وار۔ځل۔پېره۔

**کرتب** :- (ک+ر+ت+ب) (ه ۔اس۔مذ ، ج۔ونه) ۱۔دکولو جوګه کار۔دکولو لائق کار ۲۔کار۔هنر ۳۔چالاکي۔هوښياري۔عياري

**ـــــ ښودل** :- کمال ښودل۔دهنر کمال ښودل۔د خپل فن۔(لکه سپاهي توب) د کمال مظاهره کول۔شعبده بازي کول۔

**کرت کاڼے** :- (ک+ر+ت+کا+ڼ+ے) (پ تر ۔اس۔مذ ،ج۔ړي) قرت کاڼے۔قت کاڼے۔کوتکاڼے

**کرتوت** :- (ک+ر+تو+ت) (هـ۔اس۔مذ ،ج۔ونه) کار۔فعل۔عمل۔ د عموماً د خراب عمل دپاره استعما لړي۔

و صورت وته ئې مه ګوره سترګې
د خپل زويه خو عمل ګوره کرتوت (خوشحال)

**کرته** :- (ک+ر+ت) د ,, کرت،، يو قسم جمع ده چې ځينو مغيره توروسره راځي لکه : لس کرته۔

**څو ــــ** :- (څوـ) څوځله۔څومره۔واره۔

**ګرته** :- (ک+ر+ت) اسم۔مو۔ قميص۔کميس۔

**کرتى** :- (ک+ر+ت+ی) (اس ۔مو) لنډقميص ۔چې لنډلستونې لري ۔او کا لرونه نۀ لري۔ (و۔کرتي )

**کرتې**:- (ک+ر+تې) د کرت مؤنث جمع ده ۔ لکه : درې کرتې

**ګرَټ** :- (ک+ر+ټ) (صف) کوړټ۔هرګز ۔هېڅ کله هم نۀ بېخي۔هډو۔ چور پور۔

**کرج** :- (ک+ر+ج) (اس۔مذ) زوړ باز۔تربيه کړے باز ترېناک

**کرجي** :- (ک+ر+جي ) (اس۔مذ ،ج ــ ان) ۱۔زوړ باز ۲۔يو قسم (ښکاري) سپے

**کرځ** :- (ک+ر+(د) ز) (صف مذ ، مو ــ ځه) سست پست سړے۔کاهل۔

**کرچ** :- ک+ر+چ) (اس۔ صوت) ۱۔دغاښونو د جنګېدلو اواز۔دکوم سخت څيز په غاښونو کښې د چقولو اواز۔کرپ کرپ۔ ۲۔د کرچ مسلسل اواز۔

**کرچ** :- (ک+ر+چ) (اس۔مذ ،ج ــ ونه) يو قسم نېغه توره چې څوکه هم لري۔کريچ۔

**کرچ** :- (ک+ر+چ) (اس۔مذ ، جم) شاهتره ۔يو بوټے چې دارو دے۔پاپړې هم ورته وائي۔

**کرچ** :- (ک+ر+چ) (وــ کرچ)

**کرچ** :- (ک+ر+چ) (وــ کرج)

**کرچل** :- (ک+ر+چ+ل) (مص) (وــ کرچول)

**کرچل** :- (ک+ر+چ+ل) (صف مذ ، مو ــ ه) کجے۔کړو پښو واله۔هغه کس چې پښې ئې کږې وي۔کچل۔

**کرچم** :- (ک+ر+چ+م) (اس۔مذ۔جم) زعفران۔خوشبويه۔زيړ رنګي ګل کېسر۔

**کرچول** :- (ک+ر+چ+ؤ+ل) (مص) کوم سخت څيز په غاښونو کښې د کرچ کرچ اواز سره مېده کول۔۲۔په قېنچۍ سره د کرچ کرچ اواز سره پرې کول۔زر زر قېنچي کول۔

**کرچولے** :- (ک+ر+چو+لے) (اس ۔مذ) کرپندے هډوکے (چې د ګډانو په

اُوړو کښې وي) ـ کرپولے ـ

**کرچونه** :- (ک+ر+چ+ؤ+ن ه) (مص) ۱ـ غابښونه يو بل سره جنګونه ۲ـ څۀ سخت څيز په غابښونو کښې د کرچ کرچ اواز سره مېده کونه ـ

**کرچونے** :- (ک+ر+چو+نے) (اس ـ مذ ، ج ـ نې) هغه څيزچې کرچولے شي ـ کرېندے هغه نرے کچه هډوکے چې په غابښونو د مېده کولو په وخت کرچ کرچ کوي ـ

**کرچوونکے** :- (ک+ر+چ+وو+ن+کے) فاع ـ مذ ـ ج ـ کي) ۱ـ غابښونه يو بل سره جنګوونکے ۲ـ څۀ سخت څيز په غابښونو کښې د کرچ کرچ اواز سره مېده کوونکے ـ

**کرچه** :- (ک+ر+چ(ه) (اس ـ مؤ ـ ج ـ ې) يو قسم درې ګويز نقش دے چې په شړۍ کښې ئې جوړوي

**کرچهار** :- (ک+ر+چ+ها+ر) (اس ـ صوت ـ مذ) د کرچ کرچ مسلسل اواز

**کرچے** :- (ک+ر+چے) (اس ـ مذ) شاهتره ـ پاپړي ـ

**کرچے** :- (ک+ر+چے) (اس ـ مذ ، ج ـ چي) ۱ـ و ـ کرچونے ۲ـ د ګېو د خوراک يو قسم واښۀ ـ

**کرچے** :- (ک+ر+چے) (اس ـ مذ ، ج ـ چي) ۱ـ تنګ زړے او کم حوصله سړے ـ ۲ـ قهرجن ـ تڼډ ـ زر غصه کېدونکے ـ

**کرچے** :- (ک+ر+چے) (اس ـ مذ ـ ج ـ چي) کرپچي ـ هرکاره

**کرخت** :- (ک+ر+خ+ت) (ف ـ صف ـ مذ ، مو ـ ه) ۱ـ سخت ـ شغ ـ سخت اهنګ ـ ۲ـ سخت او تېز اواز (چې په غوږونو بد لګي) اصلاً د دې لفظ معنٰی بې حسه ده ـ چې هېڅ نۀ محسوسوي)

**کرخ** :- (ک+ر+خ) (اس ـ صوت ـ مذ) ۱ـ د غابښو نو په خپله کښې د جنګېدلو اواز ـ ۲ـ په غابښونو کښې د څېنې سخت څيزونو د مېده کېدلو اواز ـ لکه په ډوډۍ کښې د شګو اواز ـ

**کرختګي** :- (ک+ر+خ+ت+ګي) (ف ـ اس ـ مو) ۱ـ سختي ـ شغوالے ـ سوړنګ والے ـ ۲ـ تېزي او تېره والے ـ (د اواز)

**کرخولکه** :- (ک+ر+خو+ل+ک) (اس ـ مو ، ج ـ کې) هغه ستغ والے او بهر راوتے ځاے کوم چې په يو لرګي درنده کولو نه وروسته پاتې شي ـ

**کرخه** :- (ک+ر+خ) (اس ـ مو) هغه ګندګي کومه چې ګېو وغيره په خرمن باندې وي ـ

**کرخه** :- (ک+ر+خ) (و ـ کربنه)

**کرخې** :- (ک+ر+خې) (و ـ کربنې)

**ګرخې** :- (ګ+ر+خې) (اس ـ جمـ) لوبيا مشهور سوررنګے دال دے بوټے ئې د ځناورو خوراک وي

**کرخۍ** :- (ک+ر+خ+ۍ) (اس ـ مو) د کرخه (کربنه) تانيث دے ـ

**ـــــ چاپېره کول** :- کربنه چاپېره کول ـ دائره چاپېره کول ـ چارچاپېره (د ځان نه يا د بل چا نه) کربنه راښکل ـ

**کرد** :- (ک+ر+د) (اس ـ مع ج ـ ان ، مو ـ ه) ۱ـ د يو قوم نوم ـ چې د ايران نه قبلې ته او عراق مغرب طرف ته اوسي ـ دې علاقې ته کردستان وائي ـ ۲ـ د کرد قوم يو وګړے ـ

**کردار** :- (ک+ر+دا+ر) (ف ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) ۱ـ عمل ـ کار ـ چال چلن ـ خصلت ۲ـ طرز ـ روش ـ طور طريقه ـ

**بد ـــــ** :- (ب+د ـــ) (ف تر ـ صف ـ مذ ، مو ـ ه) خراب عمل واله ـ بدعمله ـ بد اخلاقه بد چلنه ـ

**نېک ـــــ** :- (نے+ک ـــ) (ف تر ـ صف ـ مذ ، مو ـ ه) دښۀ خصلتونو خاوند ـ خوش اخلاقه ـ نېک عمله ـ ښۀ چال چلن واله ـ

**کردستان** :- (ک+ر+د+س+تا+ن) (اس ـ مع) د ايران ترکې او د عراق عرب او د هغې د خواوشا علاقه ـ چې په کښې کرد نومې قوم اوسي ـ

**کردستانے** :- (ک+ر+د+س+تا+نے) (اس ـ مذ ، ج ـ نې ـ مو ـ نۍ) ۱ـ د کردستان اوسېدونکے ۲ـ کردستان سره تعلق لرونکے ـ

**کردستاني** :- (ک+ر+د+ش+تا+ني) (صف) ۱ـ د کردستان ملک يا قوم سره تعلق لرونکے ۲ـ کردستان کښې جوړ شوے

**کردګار** :- (ک+ر+د+ګا+ر) (اس ـ مع) (ف) جوړوونکے ـ د قدرت صانع ـ خالق ـ پېدا کوونکے ـ مراد ترې خداے تعالٰی دے (د ځينو په خيال دا لفظ د کرد (ماضي د مطلق د ګردان) او د کار نه جوړ شوے دے ځکه د کاف زور سره ئې وئيل پکار دي خو د کاف زېر سره مشهور او عام دے ـ

**کردولے** :- (ک+ر+دو+لے) (ا س ـ مذ ، ج ـ لي) کودرے ـ کودے ـ ټکرے

**کردونے** :- (ک+ر+دو+نے) (اس ـ مذ ، ج ـ نې) ټيکرے ـ د خاورين لوښي يوه ټوټه ـ

**کرده** :- (ک+ر+دَ) (ف ـ اس ـ مو ، ج ـ دې) کړے ـ کړے شوے ـ عمل ـ کړے کار لکه : خپله کرده به دې مخې له راځي ـ (پښتو کښې ليکلے خو ر سره شي خو تلفظ ئې ړ کولے شي)

په خواجه محمد کرم وکړے کريمه
مه جاربـاسه ورته تۀ خپـلـه کـرده

**کرده** :- زيات عمل کوونکے ـ ډېر کار کوونکے ـ

مړنے په کرده ډېر وئيل ئې لړوي
د نامردو لړ عمل دے ډېر ئې لاف　　(خوشحال)

**کردي** :- (ک+ر+دي) (اس ـ مع) ۱ـ د کرد خلکو د ژبې (ځبې) نوم چې فارسي ته ډېره نژدې ده ـ خو پښتو سره هم کافي تړون لري ۲ـ د کرد خلکو سره تعلق کردو ته منسوب ـ کرد قوم يا علاقې سره تعلق لرونکے ـ

**کړان** :- (ک+ر+ړا+ن) (اس ـ مع) (و ـ کرلاڼ ـ کرلاټې)

**کړکے** :- (ک+ر+ړ+کے) د يو غرئيز بوټي نوم دے چې پاڼې ئې لکه د انګورو د پاڼو په شان وي ـ

**کرړول** :- (ک+ر+ړ+ؤ+ل) (مص) ۱ـ دبره نه راپه ښکته را رغړول ـ دبره نه په ښکته حرکت ورکول ـ ۲ـ يو ځاے اوسيدل (ق)

**کرړه** :- (ک+ر+ړ) (اس ـ مو ، ج ـ ړې) ۱ـ د يو بوټي نوم ۲ـ ديوې ونې نوم

**کرړه** :- (ک+ر+ړ) (اس ـ مع) ۱ـ د پښتو د يو جمعيت نوم چې به ډېر و طائفو وېستلے شوے دے ۲ـ نسب ـ کوزۍ ـ کوړمه ـ (جوار چې لړ را لوے شي نو بيا په کښې يوې کوې چې زمکه ورته نرمه شي او فضول بوټي ترې ورک شي. دې يوې ته هم په اورکزو کښې کرړه وائي)

**کرړے** :- (ک+ر+ړے) (اس ـ مذ ، ج ـ ړي) ۱ـ کيرړے ـ مشهوره حشره چې په کورونو کښې عـام مونـدے شـي او د شـپې تېـرۀ تېـرۀ اوازونـه کـوي ـ جهينګړ ـ ۲ـ (مجازاً) نرے نرو چکے سړے ـ

**کرړے** :- (ک+ر+ړے) (اس ـ مذ ، ج ـ ړي) په لاس را ښکلے کېدونکے ګاډے د لاسو ريړه ـ

**کرړېدل** :- (ک+ر+ړے+د+ل) (مص) رغړېدل ـ د کاڼو وغيره دبره نه راپه ښکته رغړېدل ـ د کاڼو يو ځاے نه بل ځاے ته رغړېدل يا ښوئېدل ـ

**کرزو** :- (ک+ر+زو) (اس ـ مو) يو قسم بېلچه ـ

**کرزي** :- (ک+ر+ز+ي) (اس ـ مذ ـ ج) ګودارے ـ کرۍ ـ وارۀ تيرونه چې د ټي رد پاسه لګي ـ

**کرژګ** :- (ک+ر+ژ+ک) (اس ـ مع) په بلوچستان کښې د يو غر نوم

**کرړه** :- (ک+ر+ګ/ ژ) (اس ـ مو ، ج ـ ړې) چغه ـ چيغه ـ کريکه

**ـــــ کول** :- (و ـ کرړه وهل)

**ــــــوهل**: - چغه وهل ـ چغه کول ـ کریکه وهل ـ
**کرس** : - (ک+ر+س) (اس ـصوف) د وُچ لرګي د ماتېدو اواز ـ کړس ـ
**کرس**: - (ک+ر+س) (اس ـمذ) هغه ځاے چرته چې ګډې بیزې د شپې بندولے شي ـ پنډنمالے ـ
**کرس** : - (ک+ر+س) (اس ـمذ) خیره ـ د بدن خیره ـ
**کرسان** : - (ک+ر+سا+ن) (اس ـمذ ، ج ـونه) چج
**کرسانه** : - (ک+ر+س+ن+ه) (اس ـمؤ) یو قسم ګلدار بوټے ـ
**کرسپه** : - (ک+ر+س+پ) (اس ـمو) دوړے یا دربښمونه جوړ شوے مزے یا پړے ـ
**کرستانے** : - (ک+ر+ي+س+تا+نے) (اس ـمذ ، ج ـنې) عیسائي ـ میسحي ـ د حضرت عیٰسی پېروکار ـ
**کرستان** : - (ک+ر+س+تا+ن)
**کرستانے** : - (ـنے) (انګ ـاس ـمذ ، ج ـان) عیسائي ـ مسیحي ـ کرانے
**کرستانۍ**: - (ک+ر+س+تا+ن+ی) د ,,کرستانے ،، تانیث دے
**کرسچن** : - (ک+ر+س+چ+ن) (انګ ـصف مذ ، مو ـ ه) عیسائي ـ کرستان کرانے (مروت)
**کرسمس** : - (ک+ر+س+م+س) (انګ ـاس ـمذ) د عیسائیانو د اختر ورځ د حضرت عیٰسی علیه اسلام د پېدا وښت ورځ ـ کرسمس ـ
**کرسمس ټري**: - د ـونه ـ (ټ ـاو ـو+ن) (انګ ـپ تر ـاس ـمو ـح ـنې) د صنوبر د ونې هغه څانګه چې عیسائیان د اختر (کرسمس) په ماښام په خپل خپل کور کښې اودروي ـ او د رڼا بلبونه په کښې بل کړي ـ
**کرسمه** : - (ک+ر+س+م) (اس ـصف ـمو) د کار په وجه د بدن د کوم عضو د ځرمن سختېدل ـ تسمه ـ مېخ ـ مېچ
**کرسن** : - (ک+ر+س+ن) (صف ـمذ ،مو ـ ه) هغه څیز چې په اسانه ماتېدے شي ـ چغزي
**کرسۍ**: - (ک+ر+س+ی) (ع ـا س ـمو) ۱ ـ د ناستې د پاره خاص قسم چوکۍ ـ چې شاته ئې د تکیې د لګولو ځاے هم وي ـ ۲ ـ د ستنې بنیاد ـ د کاڼي یا د سیمټو وغېره نه جوړه شوې هغه (څلور ګټیزه) ټکړه ـ چې د لرګي ستن پرې د پاسه ودرولے شي ـ ۳ ـ اتم اسمان ـ
**ــــــنامه** : - (ــنا+م) (عف ـتر ـاس ـمو ـج ـي) ۱ ـ شجره نسب ـ هغه کار وغېره چې په کښې د چا د پلرونو نیکونو نومونه پیړۍ په پیړۍ لیکلې شوي وي ـ نسب نامه ـ ۲ ـ د حضور پاک صلی الله علیه وسلم د پلرونو نیکونو سلسله وار نومونه ـ
**ــــــنشین**: - (ــن+شی+ن) (عف تر ـاس صف ـمذ مو ـ ه) ۱ ـ هغه کس چې په کرسۍ باندې ناسته کوي ـ ۲ ـ یو وړوکے اعزاز چې (پخوا به) د حکومت د طرفه د اعزاز په توګه د اعتراف کښې ورکولے شي ـ
**کرسے** : - (ک+ر+سے) (اس ـمذ) د غرئیزې ګیاه یو قسم دے چې د سترګو په دارو کښې استعمالېږي ـ
**کرش** : - (ک+ر+ش) (اسم) په مشین مات کړي شوي کاڼي ـ
**کرش** : - (ک+ر+ش) (اس ـصوت) د پښو اواز ـ د قدم اخیستو اواز ـ ښکالو ـ کرښ
**کرش** : - (ک+ر+ش) (اس ـصوت) د اوده سړي دنري اواز خرپا
**کرش** : - (ک+ر+ش) اسم ، په هېڅ نۀ پوهېدنه ـ
**په ــــــنۀ تېرېدل** : - (مجازاً) په معمولي خبره هم نۀ پوهېدل احمق ـ ساده ـ بیوقوف بودل ـ
**کرشپه** : - (ک+ر+ش+پ) (اس ـمو) یو قسم غرئیزه ګیاه ده ـ چې پاڼې ئې خوشبویه وي او ښه مېوه لري ـ
**کرشت** : - (ک+ر+ش+ت) (اس ـمذ) دیوې مرغۍ نوم ـ

**کرشنان** : - (ک+ر+ش+تا+ن) انګ ـ اس مذ ، ج ـ ان ) عیسائي ـ مسیحي ـ هغه کس چې د حضرت عیسي علیه السلام پېروکاروي ـ (اصلاً دا د انګریزۍ دا لفظ ئې کرستیین بدل شکل دے چې تلفظ کرسچن هم کولے شي ـ
**کرشتانۍ** : - (ک+ر+ش+تا+ن+ی) د کرشتان تانیث دے ـ
**کرشتانے** : - (ک+ر+ش+تا+نے) (وـ کرستانے )
**کرشکه** : - (ک+ر+ش+ک) (اس ـمو) یو خړرنګے خوشبویه بوټے دے
**کرشمه** : - (ک+ر+ش+م) (ف ـ اس ـمو ـج ـ بې) ۱ ـ د سترګو زنب ـ د سترګې اشاره د وروځو اشاره ـ ۲ ـ غمزه ناز نخره ـ عشوه ـ غنج ګنج ـ کېښخ ـ ۳ ـ عجیبه ـ ناشونے کار ـ
**ــــــښودل** : - ۱ ـ ناز نخره کول ـ غمزه ښودل ـ ۲ ـ څه عجیبه ناشونے کار کول ۳ ـ کرامت ښودل ـ
**کرشنه** : - (ک+ر+ش+ن) (اس ـمو ، ج ـ نې) هنر ـ خوبي ـ
**کـرښ** : - (ک+ر+خ/ش) (اس ـصـوت) ۱ ـ د پښـو اواز ـ د قـدم اخیسـتلو اواز ښکالو ـ ۲ ـ نقش ـ
**کرښپل** : - (ک+ر+خ/ش+پ+ل) ( پ تر ـ اس ـمذ) ۱ ـ د پښې نښـان ـ د پخې دپل نشان د قدم نقش ۲ ـ علامه ـ سراغ ـ پته ـ
**کرښکالے** : - (ک+ر+خ+ش+کا+لے) (اس ـمذ ، ج ـ لي) د قسمت په زائچه کښې اوله څلورمه ـ اوومه او لسمه خانه (کورکے)
**کرښمه** : - (ک+ر+خ/ش+م) ( و ـ کرشمه )
**کرښنده** : - (ک+ر+خ/ش+ن+د) (اس ـمو ، ج ـ ې) علامه ـ نشان ـ اثر ـ نقش خط
**کرښندے** : - (ک+ر+خ/ش+ن+دے) (ا س ـمذ ، ج ـ دي) ۱ ـ نقشـه د عمارت ـ د تصویر خاکه ـ د تصویر وړومبۍ حالت ـ ۲ ـ تجویز ـ منصوبه ـ پلان ـ
**کرښنه** : - (ک+ر+خ/ش+ن) (اس ـمو) نقاشي ـ نقش کړي ـ ډرائینګ
**کرښنـه** : - (ک+ر+خ/ش+ن) (اس ـمو ، ج ـنې) علامـه نشـان ـ اثـر (د پخوانۍ زماني ابادۍ د کنډرو)
**کرښنۍ**: - (ک+ر+خ/ش+ن+ی) (اس ـمو) کنډروالے ـ د ښهر خرابے ـ
**کرښـو** : - (ک+ر+خـو/شـو) د کرښې اضـافي یـا مجـروري وغېـره (متغیـر) شکل ـ تپکے ـ
**له ــــــوتے ـد ــــــلیونے** : - بې کچه ډېر زیات لیونے داسې لیونے چې په هېڅ ډول د رغېدو امېد ئې نۀ وي ـ (مجازاً) هغه بني ادم چې په هېڅ ډول دخبرې د منلو امېد ترې نۀ شي کېدے ـ
**کرښه** : - (ک+ر+خ/ش) (اس ـمو ، ج ـ ي) خط لیکه ـ لائن ـ
**ــــــچاپېره کول** : - د کوم قطار د جملې نه (سره) کرښه تاوول ـ غلطي په نخښـه کول ـ خام لیک په ګوته کول ـ
**ــــــراښکل** : - چاته اخري شرط یا شرطونه کښېښـودل ـ چې په کښې کمے زیاتے نۀ شي کېدے ـ
**ــــــډیورنډ** : - (د+ډ+یو+ر+ن+ډ) (اس ـمو) هغه خط کوم چې سر مـارټیمر ډیورنډ د افغانستان او د هندوستان د ملکونو ترمېنځه دپولې په طور په تېره پېړۍ کښې راښکلے وۀ ـ ډیورنډلائن د ډیورنډ پوله ـ
**کرښي** : - (ک+ر+خي/شي) ۱ ـ د کرښه جمع ده ۲ ـ د کرښـه اضافي او مجروري وغېره (متغیر شکل )
**ــــــکرښي** : - هغه بد لیک چې ډېرې کرښې لري هغـه څیـز چې کرښې شان پرې راښکلې شوې وي ـ
**ــــــد تندي** : - (د+ت+ن+دي) (اس ـمو ـج ـ) د تندې ګونجې ـ چې د پخوانو خلکو په عقیده د قسمت ښۀ او بد ښکاره کوي ـ قسمت ـ نصیب ـ بخت ـ
**له ــــــوتل** : - د حد نه بهر وتل ـ د قاعدې قانون نه بهر کېدل ـ
**دلاس ــــــ** : - (د+لا+س+ــ) (اس ـمو ، ج) په لاس کښې لـه ګونجو لـه کبلـه

جوړې شوې نخښې کرښې د ځینو خلکو عقیده ده. چې دا کرښې د بنې ادم ژوند (جوند) سره تعلق لري. او بېله بېله کرښه بېل بېل څیز (لکه عمر. قسمت. بچي. وغېره) سره تعلق لري.

**کرغ :** – (ک+ر+غ) (اس. مذ، ج. ان) کارغهٔ. کارګه. کروغ.

**کرغ :** – (ک+ر+غ) (و. کړغ) مشهوره مرغۍ. ګیږکه.

**کرغړ :** – (ک+ر+غ+ړ) (اس. مذ) غم. پرېشاني. حزن.

**کرغړوچ :** – (ک+ر+غ+ړو+چ) (اس. مذ، ج. ونه) لرړۍ. چنغړک. توتکه

**کرغـړوچ :** – (ک+ر+غ+رو+ج) (اس. مذ) ګونګټ. ګنګوټ. مشهوره حشره مرغتانه. غوزاړے.

**کرغړه :** – (ک+ر+غ+ړ) (و. کرغړ)

**کرغړے :** – (ک+ر+غ+ړے) (و. کرغړ)

**کرغشے :** – (ک+ر+غ+شے) (اس. مذ) سخت. ناهموار

**کرغښے :** – (ک+ر+غ+ښے/شے) (اس. مذ، ج. ښي) د ژامې جۍ د اخرني لړ هډوکے کجکے. کنغښے. برغښے

**ــــــسره ختل :** – د جامې هډوکے د پیوند په ځاے کښې بهر ته راوتل

**کرغښے :** – (ک+ر+غ+ښے/شے) (و. کړغښے)

**کرغم :** – (ک+ر+غ+م) (اس. مذ) ډوډ ے. د اس یا د خر د کتاتي بهر ته راوتے هډوکے

**کرغوچ :** – (ک+ر+غ+ؤ+خ) (صف. مذ، مو. ه) پرېکړے. ټوټې. ټوټې. قطع شوے

**ــــــکول :** – پرې کول. ټوټې ټوټې کول. ټکړې ټکړې پرې کول.

**کرغول :** – (ک+ر+غو+ل) (اس. مذ، ج. ونه) د مرغو یو قسم بیماري ده

**کرغه :** – (ک+ر+غ) (اس. مو، ج. نې) سخته کاڼیزه زمکه ګاګره.

**کرغه :** – (ک+ر+غ) (مصف. مو) هغه وچه زمکه چې ګیاه وغېره نهٔ لري لکه: دا زمکه وچه کرغه ده.

**کرغه :** – (ک+ر+غ) (اس. مو، ج. ې) ورشو چراګاه.

**کرغۍ :** – (ک+ر+غ+ۍ) (اس. مو) یو قسم بوټے د ے.

**کرغے :** – (ک+ر+غے) (و. کرغه)

**کرغېږ :** – (ک+ر+غې+ږ) (اس. مذ) ناپاکي. ګنده توب. خیرنتوب

**کرغېړن :** – (ک+ر+غې+ړ+ن) (صف مذ، مو. ه) خېرن خیچن. مېله. ګنده. ناپاکه. ناصافه. مستوخ. هغه چې بدن او جامې ئې خیرنې وي.

**ــــــتوب :** – (ـتو+ب) خېرنوالے. ګنده والے. ناپاکي.

**ــــــکول :** – ګنده کو ل. خیرنول. ناپاکه کول

**کرغېړنول :** – (ک+ر+غې+ړ+ن+ؤ+ل) (و. کرغېړن کول)

**کرغېړني :** – (ک+ر+غې+ړ+نې) د کرغېړنه جمع ده لکه کرغېړنې اوبهٔ

**ــــــاوبهٔ :** – (ـ (و+ب) (پ تر. اس. جم) ګنده اوبهٔ. ناپاکې اوبهٔ ناصفا اوبهٔ.

**کرغېړه :** – (ک+ر+غې+ړَ) (اس. مو، ج. ړې) د کرغېړ تانیث د ے

**کرغېړنېدل** (ک+ر+غې+ړ+نې+د+ل) و. کرغیړه کېدل.

**کرفس :** – (ک+ر+ف+س) (ع. اس. مذ) د سپېرکو، د کړو په شان یوه سبزي چې په دارو کښې استعمالېږي. تیز بوې لري. چې په بنده ښهٔ نهٔ لګي.

**کرفیو :** – (ک+ر+فی+یو) (انګ. اس. مذ) هغه سائرن چې په اورېدو ئې اور یا ډېوي وغېره هر قسم رڼا مړه کړے شي. ۲. داسې پابندي، بندېز هغه چې په خاص وخت کښې هېڅوک د کوره بهر څوک نهٔ شي وتلے.

**کـرک :** – (ک+ر+ک) (اس. مذ) هغه خط یا کرښه کومه چې د دهقان یوې جوړوي کیله- کشه.

**کرک :** – (ک+ر+ک) (اس. مذ) د سېلاب هغه ختـه. چې د سېلاب نه پس اوچه شي اوا وچوي.

**کرک :** – (ک+ر+ک) (اس. مذ، ج. ونه) نرے چاود. ترپړ

**کرک :** – (ک+ر+ک) (اس. مذ، ج. ونه) کرګدن. هغه غټ ځنګلي ځناور چې د پوزې نه ئې بره یو ښکر وي. (هـ. ګېنډا) سپین اس.

**کرک :** – (ک+ر+ک) (اس. مو) د کوهاټ ډوېژن کښې د یوې ضلعې نوم. زیاتر په کښې خټک اوسي.

**کرک :** – (ک+ر+ک) (اس. مذ، ج. ان) مرز. بټېرے.

**ــــــباز :** – (ـبا+ز) (فپ تر. اس. مذ، ج. ان) مرز باز. مرزان. ساتونکے او جنګونکے. بټېر باز

**ــــــبازي :** (ـبا+زي) (اس. مو) مرزان جنګول. د مرزانو ساتنه او جنګونه بټېر بازي

**کرک :** – (ک+ر+ک) (اس. مذ، جم) سپین غنم.

**کرک :** – (ک+ر+ک) (اس. مذ) یو قسم کپړه چې د بیزو د بزې د وېښتو نه جوړولے شي

**کرکانـدي :** – (ک+ر+کا+ن+د+ي) (اس. مذ، جم) باجري. واړهٔ کاڼي چې د عمارتونو په مساله وغېره کښې پکارولے شي. کنکري

**کرکانډے :** – (ک+ر+کا+ن+ډے) (اس. مذ، ج. ډي) هغه لویه تیږه چې د غر دسر نه په ښکته را ورغړي شګلن سور رنګے کاڼے

**کرکاڼے :** – (ک+ر+کا+ن+ړے) (اس. مذ، ج. ړي) هغه کاڼے چې د زرو کوټه کره پرې معلوموي. زرکاڼے کسوټۍ

**کرکټ :** – (ک+ر+ک+ټ) (انګ. اس. مذ) د مشهورې لوبې نوم. چې په سخت غونډسکے (بال) ډنډے یا بلے (څوباړي) کولے شي.

**ــــــکول :** – د کرکټ لوبه کول د کرکټ په لوبه کښې شاملېدل.

**کرکجن :** – (ک+ر+ک+ج+ن) (صف مذ، مو. ه) کرکه کوونکے. نفرت کوونکے نهٔ خوښوونکے.

**ــــــکېدل :** – نفرت کول. کرکه محسوسول د کوم څیز یا کار نه لاس اخسیتل

**پهــــــ اواز وېنا :** – په نفرت امېز اواز وئیل. د نفرت نه په ډکه لهجه خبره کول.

**کرکجنه :** – (ک+ر+ک+ج+ن) (اس. مو. ج. نې) د کرکجن تانیث د ے.

**کرکدن :** – (ک+ر+ک+د+ن) (اس. مذ) مشهور ځنګلي غټ څورب ځناور چې د پوزې د پاسه ئې یو سخت ښکر وي. (هند. ګېنډا)

**کرکر :** – (ک+ر+ک+ر) (اس. صوت) ۱. د کر. کر په شان اواز کړکړ کله چې څوک په- نوک سره لرګے وغېره ګروي ۲. دغاښ د ګرولو اواز ۳. د قلم د چلېدلو اواز

**ــــــکول :** – ۱. د کرکر په شان اواز پېدا کول نوک یا د نوک په شان څیز په لرګي وغېره راښکل ۲. غاښ ګرول ۳. دلیکلو په وخت د قلم اواز پېدا کول. کش کش کول.

**ــــــکېدل :** – ۱. د کرکر په شان اواز راتلل داسې اواز راتلل لکه څوک چې نوک یا په تېرهٔ څیز سره لرګے یا څرمن ګروي. ۲. د بدن د ګرولو اواز راتلل ۳. د قلم د چلېدلو اواز راتلل

**ګُرګُر :** – (ک+ر+ک+ر) (اس. مو) غُر غُر. د شکایت خبرې

**ــــــکول :** – غُور غُور کول. شکایت کول لکه: چې لږ کار زیات شي نو کرکر راواخلي.

**کرکرانے :** – (ک+ر+ک+را+نے) (اس. مذ، ج. نې) د ماشومانو د لوبو د لرګي نه جوړ شوے څیز چې د کرکر په شان اواز کوي.

**کرکره :** – (ک+ر+ک+ر) (اس. مو ج. رې) ۱. جغه. جیغه. پیاده ملاتړ. د چرګ په سر کلکه غوښه چې نېغه ولاړه وي څیز قرقره ۲. د پټکي نېغه شمله.

**ــــــپه سر ایښودل ایښل. کښېښودل :** – د کرکرې (قرقرې) واله پټکے په سر کښېښودل جغه په سر لګول.

**ـــــنېغول** :- جغه۔نېغول۔مجازاً لویه شمله ودرول۔

**ـــــوهل** :- د لوړ شملې واله پټکې تړل

**کرکره** :- (ک+ر+ک+ر) (اس۔مو)عاق رقرحا۔دیوې دوانۍ نوم قرقره۔

**کرکرۍ** :- (ک+ر+ک+ر+ۍ) (اس ۔مو) ۱۔تپچه۔هغه الـه چې داسې اواز پرې وباسي چې مرزان ورته راجمع شي۔ ۲۔هره صفه الـه چې د کرکر په شان اواز پیدا کوي۔

**کرکرۍ**:- (ک+ر+ک+رۍ) (اس۔مو) مرز۔کرک۔د مرزانو یو وړوکې قسم۔

**کرکرے** :- (ک+ر+ک+رے) (اس ۔مذ ، ج ــ ري )د شبخ دوهمره یو مرغی ده۔ چې په سینه ئې سپین ټکي وي۔

**کرکرے** :- (ک+ر+ک+رے) (اس۔مذ ،ج۔ري) دیوې مرغۍ نوم دے چې سره بخنه شنه وي۔سبزکه۔

**کرکرے** :- (ک+کی+ر+ک+کی+رے) و۔کیرکیرے

**کرکړه** :- (ک+ر+ک+ړ) (اس۔مو ج۔ړې) قرقره۔جیفه۔تاج۔ټوپل۔

**کرکړے**:- کړکړے۔ځرخ۔چرحی۔چې د کوهي نه پرې اوبهٔ راوباسي. (هغه د لرګي نه جوړه اله چې باڼ (بوڼ) پرې تاووي)

**کرکړے** :- (ک+ر+ک+ړے) (و۔غرغړے)

**کرکم** :- (ک+ر+ک+م) (اس ۔مو) د بوډۍ ټال۔د باران نه پس ډېر رنګه دائره په اسمان جوړ ېدل ۔

**کرکم** :- (ک+ر+ک+م) (اس۔مذ) ګنګو۔زعفران۔

**کـرکمن** :-(ک+کو+ر+ک+ک+م+ن) (اس ۔جم)کور کمان ۔مشـهوره زیړ رنګې غوټه۔چې په مساله کښې شاملولے شي۔

**کرکن** :- (ک+ر+ک+ن) (و ۔کرکجن)

**کرکند**:- (ک+ر+ک+ن+د) (صف۔مذ ،مو۔ه) ۱۔کرکه کوونکے۔کرکجن ۲۔هغه ځیز چې کرکه ځنې کېږي مکروه شکل واله۔شاډوله۔

**کرکنډول** :- (ک+ر+ک+ن+ډ+ؤ+ل) (مص) (وـکرکنډه کول۔)

**کرکنډه** :- (ک+ر+ک+ن+ډ) (اس۔مو ، ج۔ډې) غټه تیره چې د غـر د سر نه راپه ښکته را ورغړی۔

**ـــــپه سرورغړېدل** :- په سر غټه تیره راپرېوتل۔

**کرکنډه رغړول** :- ۱۔کاڼې مخ په ښکته رارغړول۔ ۲ ۔مجازاً غټ دروغ وئیل۔ کرکنډه۔کول: د لوړے نه رارغړول

**ـــــکېدل**:- لوړې نه په ښکته رارغړېدل۔

**کرکنډه** :- (ک+ر+ک+ن+ډ) (اس۔مو ،ج ــ ډې )یو ازغن (اغزن) بوټے دے۔چې تقریباً دوو ګزو پورې لوړ وي۔کارکنډے

**کرکنډې** :- (ک+ر+ک+ن+ډې) ۱ـد کرکنډه جمع ده ۔ ۲ـد کرکنډه اضافي او مجروري وغیره (متغیر) شکل۔

**ـــــرغړول** :- ۱ـغټې۔تیرې۔(دلوړې نه) رارغړول ۲ـمجازاً غـټ دروغ وئیل مبالعه امېز دورغ وئیل۔کاڼي رغړول۔

**کرکنډې** :- (ک+ر+ک+ن+ډې) (اس۔مو۔ج۔ (بل) کرکخړې۔کشنۍ ببرې۔

**کرکنډېدل** :- (ک+ر+ک+ن+ډ+ے+د+ل) (و۔کرکنډه کېدل) خوځېدل مې کېدل۔ غورځېدل۔

**کرکنه** :- (ک+ر+ک +ڼ) (اس ۔مو۔ج ۔ړې) دببرې د ونې یو قسم دے۔چې ډېره لوړه نهٔ وي۔او نرۍ نرۍ ببرې کوي۔دغو ببرو تـه هم کرکنې وائي۔ (په غرونو او پخوانو ادېرو کښې ډېرې وي) جنګ کور وکړي اوکرکنې په صحرائهٔ خوري۔(متل)

**ـــــټولول په ناسته کنه** :- بغېر د محنتـه او خواري ځهٔ کار کـول غوښتل ۔ ناشونے کارکول۔ (د کرکنې ونه ډېره ازغنه (اغزنه) وي۔اوکرکنې وړې وړې وي۔ځکه ټولول ئې ډېره خواري غواړي) په ناسته کنه کرکنې نهٔ ټولېږي (متل)

**کر کول** :- (ک+ر+ک+ؤ+ل) کرونده کول په پټي کښې تخم غوځول یا بـوزغلے لګول کرل۔

**کر کونه** :-(ک+ر+ک+ؤ+نَ) په پټي کښې تخم یا بوزغلے کرنه۔کرونده کونه۔

**کـر کوونکے** :- (ک+ر+ک+وو+ن+کے) (پ تر ۔اس فا ،مذ ، ج ۔کي) پټي کښې تخم

کرونکے یا بوزغلے لګونکے کرونده کوونکے

**کرکه** :- (ک+ر+کَ) (اس۔مو ،ج۔کې) نفرت۔نا خوښي۔وېزاري

**ـــــکول** :- نفرت کول۔نهٔ خوښول۔

**ـــــکېدل** :- نفرت کېدل په زړهٔ کښې ناخوښي راتلل۔

**ـــــناک** :- (ـــنا+ک) (پ تر ۔صف مذ ،موـــه) کرکه لرونکے ۔نفرت لرونکے نفرت کوونکے۔

**ـــــور** :- (ـــؤ+ر) (و ۔کرکه ناک)

**ـــــد چا (ځخه) کول** :- د چا نـه نفرت کـول ۔ځوک پـه زړهٔ کښې نهٔ خوښول۔وېزاره بودل۔

**سره ـــــکول** :- د یوبل نه نفرت کول۔یوبل نهٔ خوښول۔

**نژادي ـــــ**: (ن+ژا+دي ــــــ) (فپ تر ۔اس ۔موـ ج ۔کې) نسلي کرکه ۔ نسلي نفرت۔

**کرکه** :- (ک+ر+کَ) (اس۔مو ،ج ــ کې) دکرک تانیث دے ۔مرزه ماده مرز۔

که تنزرے که سیسی ده اوکه زرکه

که فاخته ده که چرچڼه ده که کرکه

**کرکۍ** :- (ک+ر+ک+ۍ) (اس۔مو) تبش۔پیاله۔د یوې سپاره۔د سپارې ځوکه۔

**کرکۍ** :- (ک+ر+ک+ۍ) (اس۔مو) مرز۔مرزه۔

**کرکے** :- (ک+ر+کے) (اس۔مذ ،ج۔کي) خر۔بار وړونکے ځناور۔

**کرکے** :- (ک+ر+کے) (اس ۔مذ ،موـــ کي) سپاره ۔د یـوې هغـه اوسپنیزه تېره برخه چې زمکه پرې شلوي پاله۔

**کرکېټ** :- (ک+ر+کے+ټ) (و۔کرکټ)

**کر کېدل** :- (ک+ر+کې+د+ل) (مص)کرونده کېدل۔په پټي کښې تخم اچولے کېدل۔یا بوزغلے لګېدل لکه په دې ورځوکښې د تماکو کر نهٔ کېږي۔

**کر کېدنه** :- (ک+ر+کې+د+ن) (محص)کرونده کېدنه۔کرلے کېدنه۔

**کرکیمـه** :-(ک+ر+کـي+م) (اس ۔مـو۔ج ۔ې) ۱ــپنجـره ۔قفـس ، کړکیمـه کړکومے ۲۔د مرغو د نیولو یو قسم کوړکۍ۔

**کـرګ** :- (ک+ر+ګ) یا **کرګدن** :-(ک+ر+ګ+د+ن) (ف ۔اس ۔مذ) د یـو غـټ ځنګلي ځناور نوم چې دپوزې د پاسه ئې یو سخت ښکر وي کرک ۔(پوز ښکرے)(هـ۔ګېنډا)

**کرکاس** :-(ک+ر+کا+س) (وـ کرګس) ګنجی۔ چې مرداري خوري

داکړبخت مرور یار زماپه خواکښې

ګنه چا لیدهٔ کبوتر چې کرکاس ونیو

**کرګر** :- (ک+ر+ک+ر) (فپ تر ۔اس ۔مـذ ،ج ۔ان) د کرکرونديِ کـار کـوونکے دهقان زمیندار۔

**ـــــتوب یا (توبیا)** :- (ــــتو+ب) (و۔کرګري)

**کرګري** :- (ک+ر+ګ+ري) (فپ تر ۔اس۔مو) د کرکروندي کـار ۔کرکرونده۔ دهقاني۔زمینداري

**ـــــکول** :-د کرکروندي کارکول۔د هقاني کول زمینداري کول۔

**کـرګس** :- (ک+ر+ګ+س) (ف ۔اس ۔مذ ،ج ۔ان موـــه) ګنجی۔ ۔مشـهور مـردار خـور ۔مارغهٔ چې د تپـوس نـه غـټ وي او پـه سر او مرۍ ئې وزرونه وي قجیر۔کجیر۔

**کرګه** :- (ک+ر+ګ) (اس۔مو،ج۔ګې) (مل) د یوې مرغۍ نوم دے۔

**کرګۍ** :- (ک+ر+ګ+ی) (اس۔مو)د یو بوټي نوم دے چې تېرې تېرې پاڼې او وارۀ وارۀ ازغي (اغزي) لري۔

**کرل** :- (ک+ر+ل) (مص) کرونده کول۔کاشت کول۔

**ـــــاو ریبل**: (۔او۔رې+ب+ل) (پ تر۔اس۔ج)۱۔(لفظي) کرل۔(او چې فصل وشي

نو) بیا ریبل۔کرونده کول او ریبل (محاوره) سوچونه کول۔فکرونه کول۔ په زړۀ کښې منصوبې جوړول او ورانول۔

**کرل** :-(ک+ر+ل) (اس۔مذ)۱۔کنګل شوې اوبۀ۔منجمدې اوبۀ۔کنګره ۲۔پېروے ۔ رش۔ملائي۔

**ــــکېدل** :- ۱۔اوبۀ کنګل کېدل۔د اوبو برہ سر منجمد کېدل۔۲۔پېروے نیول۔رس جوړېدل

**کرل** :- (ک+ر+ل) (ه۔اس۔مذ،ج۔ونه) د کاڼي ځځه د کشتۍ په شکل جوړه شوې لنګرۍ۔چې په کښې داروګان مېده کوي۔(هـ۔کهرل)

**ــــکول** :- سُفوف جوړول۔دارو وغیره په کرل کښې مېده کول۔

**کرلاڼ** :- (ک+ر+لا+ن+ړ) (اس مع) د پښتنو یوه لویه قبیله ۔خوشحال خان خټک دې قبیلې سره تعلق لرۀ۔

**کرلاڼۍ** :- (ک+ر+لا+ڼ+ی) د کرلاڼې مونث دے کرلاڼ قبیلې ښځه۔

**کرلاڼے** :- (ک+ر+لا+ڼ+ے) (ا س۔مع) ۱۔د کرلاڼو د قبیلې یو وګړے ۲۔د کرلا ڼو د قبیلې سره متعلق دغې قبیلې ته منسوب ۳۔خوشحال خان خټک یو ځاے نیم کښې د خپل نوم په ځاے (په طور د تخلص) هم استعمال کړے دے۔خټک چې د کرلاڼې قبیلې سره تعلق لري۔

**کرله** :- (ک+ر+ل) (اس۔مو، ج ــ نې) کرنه۔کر۔

**کرم** :- (ک+ر+م) (و۔کروم)

**کرم** :- (ک+ر+م) (ع۔اس۔مذ،ج ــ ونه) ځوانمردي۔پیاوړتوب۔مړنتوب سخاوت۔فیاضي سختي توب۔بخښنه۔ورکړه مجازاً مهرباني۔ عنایت۔

**ــــپرور** :- (ــپ+ر+و+ر) (عف تر۔صف مذ، مو ــ ه) کرم کوونکے مهرباني کوونکے مهربانه سخي سخاوت کوونکے بخښنه او ورکړه کوونکے۔

**ــــپروري** :- (ــپ+ر+و+ري) (عف تر ۔اس ۔مو) کرم کونه ۔مهرباني ۔ مهرباني کونه۔سخاوت۔سخي توب۔بخښنه۔ورکړه۔

**ــــپیشه** :- (ــپے+ش) (عف تر۔صف) ځوانمرد مېړۀ۔بخښونکے۔سخي۔

**ــــشعار** :- (ــش+ر+عا+ر) (و ــ کرم پېشه)

**ــــفرما** :- (ـــف+ر+ما) (عف تر۔صف) کرم کوونکے۔مهربانه۔مهرباني کوونکے۔بخښنه ورکړه کوونکے۔

**ــــفرمائي** (ــف+ر+ما+ي) (عف تر ۔اس ۔مو) مهرباني ۔مهرباني کؤنه ۔ بخښنه۔ورکړه۔سخي توب۔

**ــــد الله دے** :- د الله مهرباني ده ۔ د الله فضل دے حال حالات ئې (ډېر) ښۀ دي۔

**کرم** :- (ک+ر+م) (ف۔اس۔مذ،ج۔ونه۔ان) چینجے۔وېنۀ۔

**ــــپیله** :- (۔پې +لَ) (ف تر۔اس مو،ج۔لې) دربښمو چینجے۔

**ــــخورده** :- (ــخ+ر+دَ) (ف تر۔صف) چینجو خوړلے۔چینجو وهلے۔وېنووهلے

**ــــشپ افروز** (ــش+پ+ر+ف+رو+زے)

**ــــتاب** :- (ــ تا+ب)

**ــــچراغ** :- (ــچ+را+غ) هغه چینجے چې شپه روښانه کوي اور اورکے۔

**کرماچو** :- (ک+ر+ما+چو) (ا س۔مو) مازو۔د دارو نوم دے۔ماز

**کرمچ** :- (ک+ر+م+چ) (اس ۔مذ) یو قسم غټه کپړه ۔چې بوټان وغېره ترې

جوړېږي۔تراپ۔

**کرمچه** :- (ک+ر+م+چ) (اس۔مو) قچه ګوته۔خچه ګوته۔

**کرمچي** :- (ک+ر+م+چي) (صف)۱۔کرمچ سره تعلق لرونکے۔کرمچ تـه منسوب ۲۔د کرمچ نه جوړ شوے۔

**کرمک** :- (ک+ر+م+ک) (ف تر۔اس۔مذ) د کرم تصغیر۔وړوکے چینجے

**کرمل** :-(ک+ر+م+ل) (مص)په مړلو مړلو نرم اود ګرد په شان نرے کول

**کرمن** :- (ک+ر+م+ن) (صف مذ،مو ــ ه) بې خوبه ۔هغه سړے چې د بې خوابۍ له کبله ګنګس شوے وي۔

**کرمن** :- (ک+ر+م+ن) (صف۔مذ، مو ــ ه)۱۔چینجو وهلے۔چینجن لکه: کرمن نمابنونه۔۲۔زوړ۔بوسیده۔چینجوخوړلے

**کرمنتوب** :- (ک+ر+م+ن+تو+ب) (پ تر ۔اس۔مذ) کرمن والے۔بې خوبي۔بې خوابي۔د بې خوبۍ په وجه ګنګس کېدنه۔

**کرمنتوب** :-(ک+ر+م+ن+یو+ب) (پ تر۔اس۔مذ)د چینجو وهلے حالت۔ازړوالے بوسیدګي۔

**کرمنګ** :- (ک+ر+م+ګ) (اس۔مذ ، ج۔ان) تنزرے تنځرے۔(اُر۔تیتر)

**کرمنګ** :- (ک+ر+م+ن+ګ) (اس ۔مذ ، ج ــ ونه)د یوې مرغۍ نوم دے ۔ کورمنګ۔

**کرمنوالے** :- (ک+ر+م+ن+وا+لے) (و۔ګرمنتوب)

**کرمونړ** :- (ک+ر+مو+ن+ړ) (صف ۔مذ ، مو ــ ه) هغه سړے چې ګوتې ئې پرې کړې شوې وي ۔یا د کولې ناجوړ تیاله کبله په کښې نقص پېدا شوے وي۔

**کرمه** :- (ک+ر+م) (صف۔مو)۱۔منځه ګوته۔د شهادت ګوته ۲۔ځینې خلک خچې یا قچې ګوتے ته هم وائي۔

**کرمه** :- (ک+ر+م) (اس ۔مع) د کرم ایجنبۍ علاقه۔

**کرمے** :- (ک+ر+مے) (اس۔مذ)د پوزې سعورے۔

**کرمے** :- (ک+ر+مے) (اس ۔مع) د کرم یا کرم خان وران شکل د رابیا (رابعه) فتح خان مشهورې روماني قصه کښې د فتح خان یو ملګرے یو شېطاني کردار مجازاً هغه ملګري ته وائي چې هر وخت ځۀ نه ځۀ مصیبت راپېدا کوي کرمے ډم۔کرمیه غم به وي غم به راوړي (متل)

**کرمي** :- (ک+ر+مي) (ف۔صف) چینجو واله۔چینجن۔

**کرن** :- (ک+ر+ن) (صف ، مذ ، مو ــ ه) مانده۔ډنګر۔لاغر۔صعیف کمزورے۔

**کرناکرنالے** :- (ک+ر+نا) (ف۔اس۔مو ج۔ګانے) سرنا ۔سرنا ۔توری۔بیګل۔ برغو۔یوکے۔بوغے۔

**کرنټ** :- (ک+ر+ن+ټ) (انګ۔اس۔مذ) د بجلۍ رو۔په تارونو کښې د بجلۍ ګرځېدنه۔

**کرنج** :- (ک+ر+ن+ج) (اس۔مو) وریژې۔وریجې۔

**کرنج** :- (ک+ر+ن+ج) ق (اس ۔مذ ،ج ــ ونه) د اوږدې تېښې یو قسم د ګینترۍ کارترې اخستے شي۔

**کرنج** :- (ک+ر+ن+ج) (اس۔مذ) د ساګ یو قسم

**کرنج** :- (ک+ر+ن+ج) (صف ، مو ، ــ ه) شین سترګے۔

**کرنجو** :- (ک+ر+ن+جو) (ف۔اس) خبسه۔خپسکه۔خپکۍ۔دیو بیمارۍ نوم دے۔

**کرنچلے** :- (ک+ر+ن+چ+کے) (اس۔مذ ، ج۔کې) ګیزۍ۔کلنګ۔مېټۍ۔کوین۔( ځدران)

**کرند** :- (ک+ر+ن+د) (صف۔مذ) ۱۔د اسونو یو قسم۔زېړ رنګے اس کرنګ۔ ۲۔ډاګه۔هواره زمکه۔مېدان

**کرندک** :- (ک+ر+ن+د+ک) (اس ۔مذ) سورمل ۔بکاړے ۔یو قسم ازغے (اغزے) دے۔

**کرندوے** :- (ک+ر+ن+د+وے) (اس ـ مذ ، ج ـ وي) یو قسم نقش دے چې په بوجۍ باندې عموداً جوړولے شي۔

**کرندوئے** :- (ک+ر+ن+دو+ئے) (اس ـ مذ ـ ج ـ ئي) د عاګو ـ دعاکوونکے ۔

**کرندوے** :- (ک+ر+ن+دو+ئے) (اس ـ مذ ـ ج ـ وي) دکر کروندې د کار پوهان۔

**کرنده** :- (ک+ر+ن+دَ) (اس ـ مؤ ـ ج ـ دې) دُعا

**کرندے** :- (ک+ر+ن+دے) (اس ـ مذ ، ج ـ دي) یو قسم تپه یا ګنیزي ده (چې یو ښاخ لري) په دې باندې کاڅې وغېره راوباسي۔

**کرندے** :- (ک+ر+ن+دے) (اس ـ مذ ، ج ـ دي) سوکے ـ (څوکے) واله لرګے چې جاوله (ژاوله) پرې راکاږي ـ لورګی ـ چخلے ۔

**کرنډ** :- (ک+ر+ن+ډ) (ه ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) د زخم وغېره د پاسه هغه نؤ چې وچ شي او یو تهه شان پرې جوړ کړي ـ د زخم پپړکے (هـ ـ کهرنډ) (سکوے.... اورکزي)

**ـــــ کول** :- د زخم دپاسه د نو نه کلکه تهه جوړېدل ـ د زخم پپړکے نېول

**کرنډۍ** :- (ک+ر+ن+ډ+ۍ) (اس ـ مو) هغه لوے لاستي واله چمچه یه کومه چې دکاندار دتیم نه تېل راوباسي۔

**کرنډۍ** :-(ک+ر+ن+ډ+ۍ) (اس ـ مو) هغه لاستي واله پلنه او هواره اله ـ په کومه چې ګلکاران علماران د ختمې سېمټو را اخلي او په خښتو وغېره کښې ئې لګوي او هواروي۔

**کرنډي** :- (ک+ر+ن+ډي) (اس ـ مو) یو قسم کپړا

**کرنړۍ** :- (ک+ر+ن+ړ+ۍ) (اس ـ مو) کړیچۍ ـ کرځو ـ ارکاره ـ هرکاره ۔

**کرنش** :- (ک+ر+ن+ش) (و ـ کورش)

**کرنک** :- (ک+ر+ن+ک) (اس ـ مذ) ککرۍ ـ کپرۍ ـ د سر بره حصه ۔

**کرنکه** :- (ک+ر+ن+کَ) (اس ـ مو ـ ج ـ کې) د ساه د اخستو نالۍ ۔

**کرنګ** :- (ک+ر+ن+ګ) (اس ـ مذ) کنګل ـ واوره شوے ـ منجمد

**کرنګ** :- (ک+ر+ن+ګ) (صف ـ مذ ، مو ــ ه) لړلے ـ په وینو لړلے شوے ـ په وینو ککړ۔

**کرنګ** :- (ک+ر+ن+ګ) (ف ـ اس ـ مذ) اس چې سور رنګ لري ـ سور رنګ اس ـ (د څینو په نزد د زیړ رنګ اس ته کرنګ وائي)

**کرنګه** :- (ک+ر+ن+ګَ) (اس ـ مؤ ـ ج ـ ګې) د کرنګ ـ تانیث دے ۔

**کرنه** :- (ک+ر+ن) کرونده کونه ـ کر کونه ـ کاشت کونه ۔

**کرنېل** :- (ک+ر+نے+ل) (انګ ـ اس ـ مذ ، ج ـ ان) د فوځ یوه لویه عهده ـ د رجمنټې لوے افسر ـ کرنل۔

**کرو** :- (ک+رو) (اس ـ مذ) د جوله جاله۔

**کرو ـــــ** :- (ک+روــ) ۱ـ د اس د بلنې اواز ـ ۲ـ د خر د بلنې اواز ۔

**ـــــ کول** :- ۱ـ اس یا خر رابلل ۲ـ رعب اچول ـ ویرول ـ متل : ـ کرو کرو په اوله شپه کېږي۔

**کرواړو** :- (ک+ر+و+ا+ړو) (اس ـ مؤ ـ ج ـ ړې) د راشې د اوچتولو نه پس چې څۀ دانې پاتې شي او راټولولے شي کرواړه بللے شي ـ (هندي : کهلواه)

**ـــــ کول** :- ۱ـ د درمن د اوچتېدلو نه وروستو ادغه میدان کښې (په چاودونو وغېره کښې د غنمو پاتې شوې) دانې ټولول ۲ـ د خاورو په ټوټکو باندې د ماشونو لوبې کول۔

**کروبي** :- (ک+ر+و+بي) (عب ـ اس ـ مذ ، ج ــ ان ـ ون) د اعلیٰ درجې فرښته ـ مقربه فرښته

**کروت** :- (ک+رو+ت) (اس ـ مذ) بغض ـ حسد ـ کینه ـ

**کروت** :- (ک+رو+ت) (صفت ـ مذ ، مو ـ ه) غټ پټ ـ مضبوط ـ تکړه ـ

**کروت** :-(ک+رو+ت) (اس ـ مذ ، ج ـ ان) شوم ـ بخیل ـ

**کروتے** :- (ک+رو+تے) (اس ـ مذ ، ج ــ تي) ۱ـ بغض لرونکے ـ حاسد ـ کینه ور

۲ـ تند خویه ـ سخت ـ خوي واله ـ

**کروځکۍ** :- (ک+رو+(ت)ش+ک+ۍ) (پ تـر ـ مـو) رزشـک ـ چـې مربـه تـرې جوړولے شي د دوائي په طور استعالېږي ګروڅکے ۔

**کروځکے** :- (ک+رو+(ت)ش+کے) (اس ـ جم) ۱ـ زرشک ـ د دغې نوم ونې مېوه چې دانې غونډې وي ـ مزې او شربتونه ترې جوړولے شي ـ کروسکے ۔ ۲ـ د دغـې ونـې پوسـتکے چې زیـړ او ډېـر تـریخ وي پـه دارو کښـې استعمالېږي ۔

**کروړ** :- (ک+رو+ړ) (صف ـ مذ ، مؤ ـ ه) سخت ـ کلک ـ لحکم ـ مضبوط ـ پهلوان ـ

**امیر ـــــ** :- (ا+مي+رـــ) (اس ـ مع) د پښتنو د يو پخواني زور ور پهلوان مشر نوم ـ چې شاعرهم ګڼلے شي (خو مستند تاریخي ثبوت ئې نشته د پټې خزانې اختراع ده)

**کروړ** :- (ک+ک+رو+ړ) (هـ ـ اس ـ عـدد) ج ـ ونه) د شمېر نوم دے ـ چې د سلو لکو برابر وي ـ لس ملینه ۔

**ـــــ پتي** :- (ـــ پ+(ت) +تي) (اس ـ صف ، ج ـ ان) ۱ـ دکروړ روپو اعتبار واله ـ د کروړ یا د کروړ نه د زیاتو روپو مالک ـ ۲ـ ډېر مالدار ډېر شتمن ۔

**پهـــ وهل** :- په تازیاتو وهل ـ په کوړو سزا ورکول۔

**ـــــ سزا** :- په کوړو د وهلو سزا ـ په کوړو د وهلو سزا۔

**کروړول** :- (ک+رو+ړ+ؤ+ل) (مص) کلکول ـ مضبوطول ـ محکم کول۔

**کروړولے** :- (ک+رو+ړ+ؤ+لے) (مف ـ مذ ، ج ـ لي) کلک کړے ـ محکم کړے ـ مضبوط ۔

**ـــــ (روپو) خبره** (ـــ رو+پو+خ+ب+رَ) ډېره قمتي خبره ـ ډېره زیاده فائده منده خبره ۔

**کروړه** :- (ک+رو+ړَ) (اس ـ مؤ ـ ج ـ ړې) تازیانه ـ کوړه ـ ترټ

**کروړه** :- (ک+رو+ړَ) د لوخې (لخې) یا د دروزې بوټې (مزے) چې څپلۍ ترې جوړولے شي۔

**کروړه** :-(ک+رو+ړ) (اس ـ مو ج ـ ې) سرے سپینګه ـ یو قسم ازغن (اغزن) بوټے دے ـ چې دانې ئې اول شنې وي بیا سرې شي او په اخر کښې تورې شي ـ خوږې وي خلک ئې خوري ـ ازغې ئې کاږۀ وي۔

**کروړي** :- (ک+رو+ړي) (صف) شوم ـ شوکت

**کروړېدل** :- (ک+رو+ړې+د+ل) (مص) د لوړې نه په ښکته رغړېدله د کاڼې دیره نه په ښکته رارغړېدل د کاڼي د یو ځاے نه بل ځاے ته ښوئېدل ـ کرړېدل۔

**کروړېدنه** :- (ک+رو+ړې+د+نَ) (مص) رغړېدنه د کاڼي د خپل ځاے نه بل ځاے ته ښوئېدنه ـ کرړېدنه۔

**کروړېدنه** :- (ک+رو+ړې+د+نَ) (محص) کلکېدنه ـ مضبوطېدنه ـ سختېدنه ـ

**کروړېدنکے** :- (ک+رو+ړې+دو+ن+کے) (اس ـ مذ ، ج ـ کي) سختېدونکے ـ کلکېدونکے ـ مضبوطېدونکے ۔

**کروزر** :- (ک+رو+ز+ر) (انګ ـ اس ـ مذ ، ج ـ ونه) سمندري جنګي جهاز د مزائل نوم دے

**کروسکے** :- (ک+رو+س+کے) (اس ـ جم) ارشک ـ ونه او د هغې مېوه چې پخولے شي ـ او مربه ترې جوړولے شي۔

**کروسن** :- (ک+رو+س+ن)

**کروسند** :- (ک+رو+س+ن+د) (صف مذ ، مو ــ ه) ۱ـ اوچ لرګے چې په اسانه ماتېږي ـ ۲ـ هر هغه وچ څیز چې په اسانه ماتېدلے شي ـ کرسند ـ کروسند ۔

**کروسنده** :- (ک+رو+س+ن+دَ) (صف) نازک او زر ماتېدونکے څیز۔

**کروسه** :- (ک+ر+و+سَ) (اس ـ مو ـ ج ــ ې) د کرفس بدل شکل دے (و ـ کرفس)

**کروسېد**:- (ک+رو+سې+د)

**کروسېډ**:- (ــډ) (انګ۔اس) صليبي جنګ۔د مسيحيانو هغه جنګونه چې مسلمانانو خلاف ئې کړي وو۔د عيسايانو جهاد۔

**کروشان**:- (ک+رو+ش+ن) (ق۔اس ۔مذ) هغه وړوکے لرګے چې چميا ران پرې د يوندې وړو وړو ټکړو له دباو ورکوي۔

**کروښکۍ**:- (ک+رو+خ+ش+ک+ۍ ) (اس۔مو) کمبله۔د کور کمبله۔

**کروښے**:- (ک+رو+خ/ شے) (اس۔مذ ،ج :خ/ شې) چيړه۔د ټوکي ټوټه۔خيرانګه

**کروښے**:-(ک+رو+خے/ شے) ( ق۔اس۔مذ) د ګړبوان استر د غاړې استر۔

**کروغ**:- (ک+رو+غ) (اس۔مذ ،ج۔ان) کارغۀ۔قارغۀ۔کارګۀ۔کراغ

**کروکور**:- (ک+رو+کو+ر) (ف۔تر۔صف۔مذ ،موــه) ۱۔کوږ او ړوند ۲۔چران۔ پريشان۔مرتد۔

**ـــــ کېدل**:- کوږ په پشان کېدل پريشانه او سرګردانه کېدل۔مرتده کېدل۔

**کـرول**:- (ک+ر+و+ل) (ق ۔اس ۔مـذ) د سپينې وريځې هغـه غـراځکے چې د ګورې تورې وريځې د پاسه راښکاره شي۔او د باران علاعه ګڼلے شي۔

**کرول**:- (ک+ر+و+ل) (ق۔اس ۔مذ) د شاتو د مچو استازے۔

**کرولے**:- (ک+ر+و+لے) (اس ، مذ ، ج ــلي) هغه لرګے چې د جغ (ژغ) په مېنځ کښې د بېلتون دپاره لګېدلے وي۔

**کروم**:-(ک+رو+م) (انګ۔اس۔جم) يو قسم معدني زيړبخنه غوندې ماده چې د ليکے نه جوړولے شي۔او په دارو کښې هم استعمالېږي۔

**کرومائيټ**:- (ک+رو+يا+ئي+ټ) (انګ۔اس۔جم) (بل) يو قسم معدني ماده چې سپين فولاد ترې تيارولے شي۔(اس ۔مع)

**کرونده**:- (ک+ر+و+ن+د) (اس۔مؤ۔ج ــدې ) د کرلو کار۔کاشت۔کرنه۔

**ـــــ ګر**:- (ــګ+ر) (پ تر ۔صفت اس ۔مذ ،ج ۔ان ۔ري لو ۔ه) دکروندې کار کوونکے۔د هقان زمېندار۔کاشت کار۔کرونکے۔

**کرونکے**:- (ک+رو+ن+کے) (اس۔مذ۔ج۔کي) کرکوونکے۔کرونده کوونکے د کرلو کارکوونکے- کاشت کار۔

**کروه**:- (ک+رو+هَ) (هـ۔اس۔مذ ،ج۔ونه) د اوږدوالي يو لوے کچ۔زردانګے کـوس ۔پـه ګزونوکښې ئې اوږدوالے پـه مختلف ډول ښـودلے شـوے دے۔څوک وائي چې څلور زره ګزه وي څوک وائي درې زره ګزه وي۔ او ځينو د ۱۹۵۰ ګزونـو ښـودلے دے ۔ځينـو د فرسـخ دريمـه برخـه ښودلې ده ۔د لاطيني د ليک برابر وو۔د ځينو په نزد دوو ميلو برابر دے۔

يار له ياره يو ګز لرې ؤ که کروه (حميد)

**کـــروے**:- (ک+ر+وے) د لفــظ د مبـــالغې او کثــرت (زيـــاتوالي) د پــاره استعمالېږي۔

**کروے**:- (ک+ر+وے) (اس۔مذ۔ج۔کروي) کراوے۔د پټې يا د فصل محافظ ۔ د د هقان پېشکار۔

**کروي**:- (ک+ر+وي) (اس۔مو) د ټانټيو ډېرے

**کروي**:- (ک+ر+وي) ( ع۔صف) غونډ۔ګول۔د کرې په شکل۔

**ـــــ شکل**:- (ـــ (ي +ش)ش+ک+ل) (ع تر ۔صف،مذ ، موــه) هغه څيز چې غونډوي۔غونډ شکل واله

**کرويات**:- (ک+ر+وي+يا+ت) (ع۔اس۔ج) د کرو جيومټرې (اقليدس)د کرو په حقله علم۔د کروسره متعلق علم۔

**کرويږه**:- (ک+ر+وي +ګ+ژ) (صف۔مو)کاواک۔سست۔بې مغزه۔

**ـــــ کېدل**:- سستېدل۔کاواک کېدل بې مغزه کېدل۔

**کره**:- (ک+ر+ه) (اس۔مو۔ج۔رې ) (بل) د ښېل يو قسم۔يوم۔

**کره**:- (ک+ر) (صف) ۱۔د کوټه ضد ۔سره۔چې کوټ په کښې نۀ وي۔سوچه۔ صفا ۲۔هغه سړے چې په لېن دين کښې راست او ديانت دار وي

**ـــــ توب**:- (ــتو+ب) (اس۔مذ) ۱۔کره والے۔سره بودنه ۲۔لېن دين کښې ديانت داري

**ـــــ کتنه**:- (ـــک+ت+ن) (ف تر ۔اس ۔مو) ۱ــ د کوم څيزکره او کوټه معلومونه ۲۔تنقيد۔

**ـــــ کول**:- خالص کول۔کوټ ترېنه ايستل۔

**ـــــ کول**:- پېسې ، مال وغېره وصولول۔پيسې قيمت وغېره وصولول نغدول

**ـــــ والے**:- (ــوا+ے) (و۔کره توب)

**کره**:- (ک+رَ) (اس۔مذ) د کور بدل شکل چې ځينو نورو الفاظو سره راځي د په کور کښې معنې ورکوي لکه :۔زما کره۔د چاکره۔

دولت څۀ دے په مثال ښائسته ناوې
د نـــــامـــرد کره ئې عمر وي په اور (خوشحال)

**کره**:- (ک+ر) (فعل)د کرل مصدر نه د امر استمراري صيغه۔

په ښوره زمکه کښې کله شي ګلونه
درته چـاوې چـې ګـلونه پرې کره (خوشحال)

**کره**:- (ک+رَ) (اس۔مو، ج۔ې) کراځه۔د زخم پرکے يه چوخے۔خروکے۔

**کره**:- (ک+رَ) (اس۔مو) پيپ چې په زخم پيدا شي۔خيږ۔

**کره**:- (ک+ر+رَ) (ف (اس۔مذ) بنګړے۔بنګړي۔

**کره**:- (ک+ر+رَ) (و ــ کرت)

**کره**:- (ک+ر+رَ) (ع۔مؤ۔ج۔رې) ۱۔غونډ څيز۔غونډ ګولـه هر غونډ څيز لوے وي او که وړوکے ۲۔هغـه غونډه الـه ۔چې د زمکې نقشـه پرې جوړه شوې وي۔او د خپل کوږ محور نه چاپېره چورلوے کېدلے شي ۔عام طور په مدرسه او سکولونو کښې خاص طور سره د زمکې د حرکاتو د ښودلو د پاره پکارولے شي۔

**ـــــ ارض**:- (ـــر+ر+ض) (عف تر ۔اس ۔مؤ) ۱ـ د زمکې کره ۔زمکه چې د غونډې کرې په شکل کښې ده ۲۔درسته زمکه۔ټوله دنيا۔

**ـــــ خاک**:- (ــخا+ک) (عف تر۔اس۔مذ) زمکه۔د زمکې کره۔مزکه۔مځکه۔

**ـــــ زمين**:- (ــز+مې+ن) (و۔کرۀ ارض)

**ـــــ هوا**:- (ــه+وا) (عف۔تر۔اس۔مو) د زمکې نه چارچاپېره د هوا هغه لويه دائره چې د زمکې نه پورته يو خاص حد پورې هر طرف ته موجوده ده۔

**د دنيا ـــــ** (د+د+ن+يا ـــ)

**د زمکې ـــــ** (د+ز+م+کې ـــ) (عپ تر۔اس۔مو) د زمکې لوے غونډ

**کره**:- (ک+رَ) ( ف۔اس۔مو، ج۔رې) د اسپې بچے بچېرے۔کورنګے جهان سپرلکے سيرلکۍ (ديوکال)

**ـــــ خر**:- (ــخ+ر) (پ تر۔اس۔مذ) ۱۔د خر بچے۔کوچے۔کوځے۔کوټے۔کوتړے (چې د دوو کالو وي نوکاکړ ورته ددک وائي) ۲۔غبي۔نالائق۔بې عقله۔ احمق

**کرها**:- (ک+ر+ه+ن) (ع ۔تف) په کراهت سره ۔په ناخوښۍ سره د مرضۍ يا رضاخلاف (عموما طوطا سره يو ځاے راځي۔

**کرها طوعا ـــــ** (عف تر ۔تف) په ناخوښۍ يا پـه فرمـابردارۍ سره پـه خوښـۍ او پـه نـا خوښـۍ مجبوري وي اوکـه پـه خوښـه وي ۔لازمـاً ضروري په هر حالت کښې

**کرهار**:- (ک+ر+ها+ر) (اس۔صوت) د کرکر مسلسل اواز۔

**کره پندے**:- (ک+ر+پ+ن+د ے) (و۔کرپندے )

**کرهډ**:- (ک+ر+ه+ډ) (صف) سرسبز۔شاداب۔شقين تروتازه۔

**کرهډ**:- (ک+ر+ه+ډ) (اس۔مذ ،ج ــونه) يو قسم ازغن (اغزن) ونه ده مرکنډۍ۔

**کرهړے**:- (ک+ر+ه+ړے) (اس ۔مذ ،ج ــ ړي) کيـرړے ۔مشـهور چينجے

(حشر) چې په غسل خانو يا د خوراک څښـکاک ځـايونو کښـې وي او د شپې نري اوږدۀ اوږدۀ اوازونه وباسي .

**کره کۍ** :- (ک+ر+ک+ۍ) (اس۔مو) سسپار۔د وسپنې هغه تيرۀ څيز چې يوې کښې ورکوي۔

**کرهڼه** :- (ک+ر+ه+ڼ+ه) ( پ تر اس۔مؤ ج۔ړې) کرنه۔کرونده۔کاشت۔

**ــــ کول** :- کرونده کول۔زراعت کول پټي کرل۔

**کرهڼے** :- (ک+ر+ه+ڼ+ے) (اس۔مذ ،ج۔ړي) کرګر۔کرونده ګر۔زميندار د هقان۔

**کرهه** :- (ک+ر+ه) (اس۔مو ،ج۔هې) کرکه۔نفرت۔ناخوښي۔

**کره ئيز** :- (ک+(ر) +ر+ي+ز) (صف مذ ،مو۔ه) دکرې د شکل۔غونډ۔

**ــــ تغوندے** :- (ــ ت+غو+ن+د ے) (پ تر ۔اس ۔مذ ،ج ۔ي) غونډ شکل والـه کاسه

**کرهيړ** :- (ک+ر+هي+ړ) (اس۔مذ ،ج۔ونه )

**کرې** :- (ک+رې) (اس۔صوت ) د سپي د شړلو اواز۔چخې۔

**ــــ شه** :- ۱۔د سپي د شړلو کلمه ده ۲۔چا ته په حقارت سره د تللو دپاره وئيلې شي څه لکه دسپي لاړ شه۔

**کرۍ** :- (ک+ر+ۍ) (اس۔مو) په لاس د کړې د اودلود کارګاه د الاتو يو قسم۔

**کرۍ**:- (ک+ر+ۍ) (صف) ټوله۔درسته۔سمه۔تمامي دا لفظ د ظرف زمان نورو الفاظو سره راځي۔

**ــــ شپه** :- (پ تر ۔اس۔مو) درسته شپه۔ټوله شپه۔تمامي شپه۔

**ــــ مياشت** :- (۔م +يا+ن+ش+ت) (پ تر۔اس۔مو) درسته مياشت۔ټوله مياشت

**ــــ ورځ** :- (ــ ؤ+ر+(د) +ز) (پ تر ۔اس۔مو) درسته ورځ۔ټوله ورځ

**کرے** :- (ک+رے) (آس۔مذ ،ج۔ري) د شين رنګ د يوې مرغۍ نوم

**کرے** :- (ک+ر+ے) (صف۔مذ ،مو۔ې) درست۔ټول۔ دا لفظ د ظرف زمان نورو الفاظ سره راځي او دغه معنې ورزياتوي ۔ (د مذکر په شکل ئې استعمال عام نۀ دے )

**ــــ کال** :- (ــ کا+ل) (پ تر ۔اس۔مذ ،ج۔ونه) درست کال ۔ټول کال۔تمامي کال

**کرے** :- (ک+رے) (اس۔مذ ،ج۔ري) کره کوونکے۔صراف

**کرے** :- (ک+رے) (اس۔مذ ،ج۔ي) خبر۔پيغام۔سوال جواب

**ــــ استول** :- (و۔کرے ليږل )

**ــــ ليږل** :- خبر ليږل۔پيغام ليږل۔خبراستول۔

**ــــ کول** :- د سپي شړل۔سپي ته د شړلود پاره کرې وئيـل ۔ستا د خبرې مې توبه ده داپسي دې رانه کرې کړه (متل)

**کري** :- (ک+ري) (ف تر ۔اس ۔مو) کوڼ والے

**کرياب** :- (ک+ر+يا+ب) (صف۔مذ ،مو۔ه) ۱۔محتاج حاجتمند۔درمانده۔بني ادم دے کله درياب دے کله کرياب (متل) ۲۔(ق) معطل۔بېکاره

**کريابي** :- (ک+ر+يا+بي) (اس ۔مو) ۱۔حاجت مندي ۔احتياج ۔لاچاري ۲۔(ق) معطلي۔بېکاري۔

**کريابېدل** :- (ک+ر+يا+بې+د+ل) (مص) ۱۔محتاجه کېدل۔حاجت مند کېدل۔ لاچاره کېدل ۲۔(ق) معطل کېدل۔بېکاره کېدل۔

**کريابېدونکے** :- (ک+ر+يا+بې+دو+ن+کے) (اس ۔مذ ، ج ۔کې) ۱۔محتاجه کېدونکے ۔لاچاره کېدونکے ۲۔معطل کېدونکے۔بېکاره کېدونکے

**کريانه** :- (ک+ر+يا++نه) (اس۔مو ،ج۔ې) ځنګلي اوربشه

**کريانے**:- (ک+ر+يا+ڼ+ے) (و۔کرلانے)

**کرېب** :- (ک+رې+ب) (اس ۔مذ ،ج ۔ونه) رکاب ۔غالباً چې د رکيب اړولے (مقلوب) شکل دے۔

**کرېبي**:- (ک+رې+بي) (اس۔ج۔) هغه خلک يا اسونه چې کوم بزرګ يا لوے سړي سره روان وي هم رکاب

**کرېت** :- (ک+رې+ت)

**کرېټ** :-(ک+رې +ټ) (اس ۔مع) په بحيره روم کښې د مشهورې جزيرې نوم۔

**کرېت** :- (ک+رې+ت)

**کرېټ** :- (ــــ ټ) (انګ۔اس۔مذ ،ج۔ــونه) د لرګو صندوق يا پېټۍ چې په کښې مېوه يا نور داسې څيزونه د يو ځاے نه بل ځاے ته ليږلې شي۔

**کرېچ** :- (ک+رې+چ) (اس۔مذ ، ج ــونه) کرچ۔د تورې يو قسم چې تېره وي۔ تېره څوک لري۔

**کريچے** :- (ک+ري+چے) (اس ۔مذ) يو قسم ګياهي بوټے چې تريخ وي واړۀ واړۀ ګلونه کوي۔خو ښاروي ئې خوري۔

**کريچے** :- (ک+ري+چے) (اس۔صوت) د کرچ کرچ اواز۔چې د غاښونو په مښلو پېدا کېږي

**کرېډټ** :-(ک+ر+ډ+ټ) ( انګ۔اس۔مذ )۱۔اعتبار۔باور ۲۔سرلوړے۔فخر۔ درناوے ۳۔په بېنک کښې پنګه لرنه ۴۔په پور مال ورکونه

**کرېړ**:- (ک+رې+ړ) (اس۔مذ) و ــ کريړه

د کرېړونه ترخــــه هم زړه ده
میوه ئې ولې پسته خوږه ده                    (خوشحال)

**کرېړ**:- (ک+رې+ړ) (اس۔مذ ،ج ــونه ) کرکانړي۔کينکري (کاکړ) واړۀ کاڼي چې د تعمير د پاره پکارولے شي۔ ۲۔سنګلاخ۔کاڼيز

**کرېړه** :- (ک+رې+ړَ) (اس۔مو ،ج۔ړې) يو غرئيزه ونه چې لرګے ئې سخت نۀ وي ۔زرماتېږي او واړۀ واړۀ ازغي لري۔

**کرېړه** :- (ک+رے+ړَ) (صف يو ۔ج۔ړې) سخته زمکه۔

**کريــړه** :- (ک+ري+ړَ) (اس ۔مـو ،ج ــړې) کريـړه ۔يـو قسـم دارو دي (ف ۔ جوزهندي۔بادريخ

**کرېړے** :- (ک+رے+ړے) (اس۔مذ ، ج۔ړي) ۱۔د ګوړې د جوړولو لوے کړهے يشولے ۲۔د ګوړې ټينګ يشولے شربت چې ګوړه ترې جوړولے شي۔

**کرېړے** :- (ک+رے+ړے) (اس۔مذ ،ج ــړي) يو قسم مرغۍ ده۔چې د اوبو په نماړو ليدے شي۔

**کرېز**:- (ک+رے+ز)

**کريـز**:- (ک+ري+ز) (اس۔مذ ، ج ۔ونه) د مرغو مرغانو په خاص موسم کښې خپل وزرونه غرځونه ۔د مرغۍ مارغانو هغه حالت چې زاړه رو کمردرے دزرے غورزولی ۔د دے کريز يا د وزر د غورځولو نه پس مرغۍ ډېره بدرنګه شي۔کوريځ

**لهــــوتل** :- د مرغۍ د کرېز وخت تېرېدل دغه وخت دغه مرغۍ نوې بڼې وزرې وباسي۔

**کريږه** :- (ک+ري +ږَ) (ا س۔مو ،ج۔ږې ) کريغه۔چغه۔کريکه

**کرېږ** :- (ک+رے+ګ/ږ) د زخم د پاسه پترکے ۔خيږ۔کره کراځه۔پړچوخے۔

**کريږه** :- (ک+ري+ګَ/ ږَ) (اس ۔مو ،ج ــږې) کريکه ۔چغه ۔هغه په زوره چغه کوله چې د ويرې په وخت وښکلې شي۔

**کريشبا** :- (ک+ري+ش+با) (ق ۔اس ۔مو ،ج ۔ګانې ۔)ګردنۍ ۔هغه پټه چې د کارتوسونو د پاره په کښې خانې جوړې شوې وي کارتوسونه په کښې واچوي او بيا ئې په غاړه کښې واچوي۔شخولۍ۔

**کرېغ** :- (ک+رې+غ) (اس۔مذ ،ج۔ونه) (و۔کريز)

**کريغه** :- (ک+ري+غَ) (اس۔مو ،ج۔غې) کريکه۔چغه۔کريږه

**کرېک** :- (ک+رے+ک) (انګ اس ۔صف) چاودے ۔مجازاً هغه چې په مزغو (ماغزو) کښې ئې فرق وي۔ليونے۔يا چې کارونه ئې سم او صحيح نۀ وي

**کريکه** :- (ک+ري+کَ) (اس ـ مو ، ج ـ کې) چغه ـ کريغه ـ کريږه ـ هغه چغه چې د ويري ناڅاپه وبنکے شي ـ

**کريکي** :- (ک+ري+ک+ی) (اس ـ مو) د پښتو چکو نه جوړشوے کندو ـ جلته ـ د غلې کندو ـ

**کريله** :- (ک+ري+لَ) (اس ـ مو ، ج ـ لې) مشهوره ترکاري چې ترخه وي خو د پخولو نه اګاهو ئې تريخوالے په مختلفو طريقوکم کړے شي

**کريم** :- (ک+ري+م) (انګ ـ اس ـ جم) ۱ ـ پيروے ـ ملائي ۲ ـ د يو څيز غوره او سوچه برخه

**کريم** :- (ک+ري+م) (ع ـ آس ـ صف ـ مذ ، ج ـ آن ـ کرام) ۱ ـ بزرګ ـ عزت ـ د عظمت واله ـ د عزت او احترام خاوند ۲ ـ سخي ـ سخاوتي ـ سخاوت کوونکے ـ (په اصطلاح کښې هغې نېک بنده ته وائي ـ چې په خپل حاجت باندې د بل حاجت تعدم کړي ـ ۳ ـ د خدا ے پاک يو صفاتي نوم ـ کرم کوونکے ـ مهربانه ۴ ـ د نارينهٔ په نومونو کښې استعماليږي

**ـــــ خداوند** (خ +دا+و+ن+د) (عف تر اس ـ مذ) مهربانه خدا ے ـ مهرباني کوونکے خدا ے ـ

**کريم داد** :- (ا س مع) ميان کريم داد چې عبدالکريم هم بللے شي ـ د اخون درويزه زو ے وۀ ـ د سوات په کانجو نومې کلي کښې ښخ د ے ـ

د کانجو ميان کريم داده

مانيولي لمن ستاده ـ (حافظ)

**کريمن** :- (ک+ري+م+ن) (صف مذ ، مو ـ ه) نمجن ـ نوواله ـ نمدار ـ نوجن ـ نم ناک ـ

**کريمه** :- (ک+ري+مَ) د کريم تانيث د ے لکه : ايت کريمه ـ

(**ايت**) ـــــ :- (آ+ی+ت ـــ) (عف تر ـ مذ ، ج ـ ايات) عزت واله ايات ـ د احترام واله ايت ـ

**کريمي** :- (ک+ری+ي) (عف تر ـ اس ـ مو) ۱ ـ سخاوت ـ سخي توب ـ بخشش ورکړه ۲ ـ بزرګي ـ عزت ۳ ـ مهرباني

**کريميا** :- (ک+ری+م+يا) (اس ـ مع) د يو ملک نوم

**کرينه** :- (ک+ری+نَ) (اس ـ موۀ ، ج ـ ې) قرينه ـ (انګ (ورډګ)

**کريه** :- (ک+ري+ه) (ع ـ ص) هغه څيز وغيره چې کرکه ترې کيږي نفرت انګيز ـ کراهت واله ـ

**کريه** :- (ک+ري+يَ) (اس ـ مو) سفارش ـ سپارش ـ پيغام ـ حکم ـ هدايت

**ـــ کول** :- سفارش کول هدايت کول ـ حکم کول

**کړ** :- (ک+ړ) (اس ـ صوت) ۱ ـ د کاڼو يا د سختو څيزونو په خپلو کښې د جنګيدلو اواز ۲ ـ (فعل) د کړل غير مستمل مصدر) نه د ماضي صيغه ـ وکړ ۳ ـ کش ـ غږ ـ لکه : کړونۀ کړې

**ـــــ کوړ** :- (ـــ کو+ړ) (اس ـ صوت) د کړ ـ کړ په شان مسلسل اواز کش کړپ ـ کړکړ

**ـــــ کوړ کيدل** :- کړ کړ ,, کيدل ، ،

**کړ** :- (ک+ړ) (اس ـ مذ) کړاو ـ رنج ـ محنت ـ تکليف ـ خواري ـ لکه : زۀ ئې له کړه خلاص شوم ـ

**کړ** :- (ک+ړ) (اس ـ مذ) نشاسته

**کړ** :- (ک+ړ) (اس ـ مذ) هغه ګياه چې د څاروي د خوراک نه پس چې کومه پس خوره پاتې شي ـ کنګړ

**کړا** :- (ک+ړا) (اس ـ صوت) د چرګې يا د زرکې اواز

**کړاپ** :- (ک+ړا+پ) (اس ـ مذ) زوړ او کمزور ے غويا ے ـ

**کړاپے** :- (ک+ړا+پے) (اس ـ مذ ، ج ـ لې) لنډمزل ـ لړه شان فاصله ـ

**کړاچے** :- (ک+ړا+چے) (و ـ کړاڅے)

**کړاچي** :- (ک+ړا+چي) (اس ـ ج) (بل) واړۀ ـ کشنيان ـ ماشومان ـ وړوکے هلک ـ نابالغ هلک ـ ماشوم ـ

**کړاسکه** :- (ک+ړا+س+ک) (اس ـ مذ) دنګ لوړ زلمے ـ

**کړاسو** :- (ک+ړا+سو) (صف ـ مذ) ګرډنجن ـ ګروجخوواله ـ چيچړ غونجې غونجې ـ لکه : ـ کړاس مخ لري ـ (خصوصاً هغه څرمن چې د دباغت په وخت سوخته او چيره شي ـ ۲ ـ زوړ ـ فرسوده ـ

**کړاغ** :- (ک+ړا+غ) (صف ـ مذ ، مو ـ ه) ۱ ـ کمزور ے ـ ناتوانه ـ ضعيف ۲ ـ نر ے نرو چکے

**ـــ توب** :- (ـــ تو+ب)

**ـــ تيا** :- (ـــ ت+يا) (اس ـ مذ) کمزوري ـ ناتواني ـ ضيعفي ـ مانده توب ـ ډنګ توب ـ

**کړاغ** :- (ک+ړا+غ) (اس ـ مذ) کارغۀ ـ قارغۀ ـ کارګۀ ـ

**کړاغ** :- (ک+ړا+غ) (اس ـ صوت د کارغۀ په شان اواز ـ

**ـــ کړاغ** :- (ـــ ک+ړا+غ) (اس ـ صوت) د کارغۀ په شان اواز ـ قا ـ قا ـ قان ـ قان ـ

**کړاغند** :- (ک+ړا+غ+ن+د) (صف ـ مذ ، مو ـ ه) ۱ ـ ډېرزيات ضيعف ـ ډېر زيات کمزور ے ـ ۲ ـ ډېر زيات مانده ـ تپ ـ ډنګر

**ـــ توب** :- (ـــ تو+ب)

**ـــ والے** :- (ـــ وا+لے) (ا س ـ مذ) ۱ ـ کمزوري ـ ناتواني ـ ضيعفي ۲ ـ مانده والے ـ ډنګروالے تپ توپ حالت ـ

**ـــــ کول** :- (و ـ کړاغندول)

**کړاغندول** :- (ک+ړا+غ+ن+د +و+ل) (مص) ۱ ـ کمزور ے کول ـ ناتوانه کول ـ ۲ ـ مانده کول ـ ډنګر کول

**کړاغه** :- (ک+ړا+غ) (اس ـ مؤ ـ ج ـ غې)

**کړاک** :- (ک+ړا+ک) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) چنې هومره غونډ کړے څيز ـ

**کړاک** :- (ک+ړا+ک) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) کړان ـ کړيدنه ـ تکليف ـ محنت

**کړاکړ** :- (ک+ړا+ک+ړ) (اس ـ مع) د سوات او بونير په مېنځ کښې يو لو ے غر چې لاړې ئې ډېرې سختې دي ـ

**کړان** :- (ک+ړا+ن) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) کړاو ـ تکليف ـ زحمت ـ کړاک

**کړاند** :- (ک+ړا+ن+د) (صف ـ مذ ، مو ـ ه) سرګردانه ـ مصيبت وهلے ـ په تکليف اخته ـ مغموم ـ پريشان ـ

**کړانګيچ** :- (ک+ړا+ن+ګي+چ) (اس ـ مذ) د هلکانو د يوې لوبې نوم ـ ګلي ډنډه ـ

**کړانګے** :- (ک+ړا+ن+ګے) (صف ـ اس ـ مذ ، ج ـ ګي) بېنګے ـ هغه چې سترګې ئې کږې وي کوږ سترګے ـ

**کړانوے** :- (ک+ړا+ن+و+ے) (اس ـ مذ ـ ج) وړه زينه ـ چې څلورپښې لري او د رالنډو څيزونو دا اخيستلو دپاره پکارولے شي

جانان مې دنګ او زۀ مندرے يم

د ديدن ځا ے له کړانو ے په ترخ کښې وړنه

(اصلاً کړانوه د لرګي هغه خاص قسم پېزار ته وائي ـ چې د زمکې نه درې څلور انچه لوړ وي ا وپه پښو کښې د ګرځېدو دپاره پکارولے شي ـ

**کړاو** :- (ک+ړا+ۋ) ورزش ـ عمل ـ مشق ـ

**کړاو** :- (ک+ړا+ۋ) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه ) کړان ـ تکليف ـ زحمت ـ خواري ـ

**ـــ پيښيدل** :- تکليف پيښيدل ـ خواري پيښيدل ـ زحمت ـ (ور) دوڅاره کېدل ـ

**ـــــ کول** :- تکليف کول ـ زحمت کښل ـ خواري کول ـ محنت کول ـ ورزش کول ـ

**په ـــــ خته کېدل** :- په تکليف کښې ننښتل ـ خواري (ور) پيښيدل ـ په زحمت کښې ګرفتاره کېدل ـ

**کړاوو** :- (ک+ړا+وو) (اس ـ مذ) کړاو کوونکے ـ زحمت کوونکے محنت خواري کوونکے ـ جدوجهد کوونکے زخمت کش ـ کارکن ـ محنتي

**ـــــ له (د) ډک** :- ۱ ـ د تکليف نه ډک ـ هغه کار وغيره چې ډېر تکليف ـ زحمت او خواري پکښې کول غواړي ۲ ـ د ډېرو تکليفونو نه ډک ـ

**کړاوے** :- (ک+ړا+وے) (اس۔مذ ،ج۔وې) ورزش کوونکے۔
**کړاوے** :- (ک+ړا+وے) (و۔کړاوو)
**کړاوین** :- (ک+ړا+وي+ن) (ه ۔اس ۔جم) د لرګي پنې چې اکثر به په ختو کنبې اچولے شي
**کړبې** :- (ک+ړ+ب+ے)د ناز خطاب۔د مینې خطاب
**کړبو** :- (ک+ړ+بو) (اس ۔مذ) هغه چې سپي چیچلے وي د سپي چیچلے د سپي خوړلے
**کړبه** :- (ک+ړ+بَ) (اس مؤ،ج۔بې) ټانټه۔د جوارو وچ بوټے د جوارو ډانډے۔
**کړبېزن** :- (ک+ړ+بے+ز+ن) (صف ۔مذ ، موـه) هغه کس چې پوزه ئې هروخت د ګړنګ نه ډکه وي یا چې هر وخت ئې د پوزې نه ګړنګ بهېږي۔قرمېزن
هېڅ خواړهٔ نهٔ وي حرام څهٔ ترحلالو
بـارې خپله خور او لور ده کړبېزنه (حمید)
**کړبېزي** :- (ک+ړ+بے+زي) (اس۔مو) کړبېزني۔قرمیزنتوب۔قرمېزن والے
**کړبیکه** :- (ک+ړ+ي+ک) (اس۔مو،ج۔کې) د یوې د سسپار لاسته
**کړپ** :- (ک+ړ+پ) (اس ۔صوت) ۱۔د دوو سختو څیزونو د جنګېدو اواز ۲۔د قدم په اخستو سره د پېنرار اواز
ـــــ **کړپ**:- ( اس صوت) ۱ ۔ دکړپ مسلسل اواز ۲۔د قدمونو په اخستلو سخت اواز
**کړپا** :- (ک+ړ+پا)
**کړپار** :- (ک+ړ+ا+پا+ر)
**کړپهار** (ک+ړ+پ+ها+ر) (اس۔صوت) د کړپ کړپ مسلسل اواز
**کړپړ** :- (ک+ړ+پ+ړ) (اس ۔مذ) ۱۔ګډې وډې خبرې ۔اوتې بوتې فضول خبرې ۲۔په جواب کنبې اواز اېستـل ترپر ۔لکه : خبردار چې هېڅ کړپر ونه کړې۔
ـــ **کول** :- ۱۔ګډې وډې خبرې کول ۔فضول بې مطلبه خبرې کول ۲۔اعراض کول
په جواب کنبې خو لۀ خوځول ټرپر کول
**کړپند** :- (ک+ړ+پ+ن+د) (صف ۔مذ ،موـه) ۱۔هغه سړے چې ډېرې زیاتې خبرې کوي۔ ۲۔بدخویه سړے
**کړپندوکے** :- (ک+ړ+پ+ن+دو+کے) (اس ۔فا ۔مذ ،ج ـ کې) ۱۔ډېرې خبرې کوونکے خبرلوځے ۲۔بد خویه سړے
**کړپنده** :- (ک+ړ+پ+ن+د) (صف ۔مو) ۱۔کاڼیزه (لاره ) سشګلانه ۲۔د یوې غرئیزې ونې نوم۔
**کړپندے** :- (ک+ړ+پ+ن+دے) (اس ۔مذ ،ج۔دي ) هغه نرم او پوس هډوکے چې خوړے شي لاپه غاښونو کنبې کړپولے شي۔کړپندے۔
**کړپوز** :- (ک+ړ+پو+ز) (اس۔مذ ، ج،ونه) د اوبښ وغېره کورے۔تیمبوزک۔
**کړپه** :- (ک+ړ+پَ) (اس ۔مؤـج ـلې) غرئیزه ناهمواره لار ۔د غرۀ لوړه جوره (ژوره )
**کړپه** :- (ک+ړ+پَ) (اس ۔مع) په افغانستان کنبې د پاکستان سرحد ته نزدې یوځاے۔
د خیبر دره ئې سره کړله په وینو
په کړپه ئې هم روان کړ دندوکار (خوشحال)
**کړپی** :- (ک+ړ+پ+ی) (اس۔مو) سخته او د تنګ دپاره ګرانه لاره کړکه لاره۔
**کړپے** :- (ک+ړ+پے) (اس ۔صوت) د کړپ اواز۔کړپهار
**کړپے** :- (ک+ړ+پے) (اس۔مذ) ډېر خبرے۔کرتے۔
**کړپېچن** :- (ک+ړ+پې+چ+ن) (صف ، مذ ،موـه)د محبوبا د قله ۔داسې ځاے چې د ننه وتو لار ئې داسې پېچ پېچ وي چې سړے په کنبې تېرووزي (ا بهول بهلیال) لکه: ـیوداسې کړپچنه ئې جوړه کړه چې سړے په کنبې ورکېږي۔
ـــــ **لار**:-(ـلا+ر) داسې لارچې تاو راتاو وي او سړے په کنبې ورکېږي۔
**کړپېدل** :- (ک+ړ+پې+د+ل) (مص) ۱ـد مختلفـو څیزونـو پـه خپلـه کنبـې د جنګېدلو په وجه کړپ کړپ اواز اېستل۔ ۲ـرپېدل۔لړزېدل۔ګړېدل ۔ لکه دساړۀ څخه ئې زامې (جامې) کړپېدې۔
**کړت** :- (ک+ړ+ټ) (اس۔صوت) کش۔د خولې نه وتے مات ګډ لفظ قړت۔کړ۔ غړنړے شان اواز۔وړه شان خبره۔
ـــــ **نه کول** :- د خولې نه غړ نۀ اېستل ۔بېخي چپ پاتې کېدل ۔خاموشي اختیارول جواب نۀ ورکول۔اعتراض نۀ کول۔
ـــــ**ونه کړې** :- چې د خولې نه دې غړ ونۀ ځي چې هېڅ جواب یا اعتراض ونۀ کړې۔چې کش ونۀ کړې (د تنبیه په طور وئیلے شي)
**کړت** :- (ک+ړو+ت) (اس۔صوت) د کرکې چرګې اواز د بچو واله چرګې اواز۔
ـــــ **کړت کول** :- کرکې چرګې اواز کول یا د بچو والـه چرګې اواز چې خپلو بچوله پرې څۀ اشارې ورکوي.
**کړتکي** :- (ک+ړ+ت+کي) (اس ۔ج) د څپلو یو قسم دے ۔چې یو تلے او یو بند لري
**کړتن** :- (ک+ړ+ت+ن) (صف مذ ، موـه) ډېرې کړتې کوونکے ۔ډېرې خبرې کوونکے۔
**کړتو**:- (ک+ړ+تو) (و ـــ کړتن)
**کړتو**:- (ک+ړ+تو) (صف) چین لرونکے۔ګونجے لرونکے پلېټونو واله۔کوت واله۔چوڼ واله۔
**کړتونے** :- (ک+ړ+تو+نے) (مذ ، ج۔نې) هغه وړوکے هلک چې ډېر خبرې کوي۔ ډېرې کړتې کوونکے هلک قرتونے۔
**کړته** :- (ک+ړ+تَ) شکته۔کښته۔کوز۔
**کړته** :- (ک+ړ+تَ) (اس۔مو،ـج۔تې) ۱۔ډېرې کړتې کوونکے۔ډېرې خبرې کوونکے۔فضول ګویه۔ ۲۔فضول خبره۔
**کړتهار**:- (ک+ړ+ت+ها+ر) (اس۔صو) دکړت کړت مسلسل اواز ـ د بچو واله چرګې اواز چې بچو ته پرې څۀ اشارې کوي۔
**کړتې** :- (ک+ړ+تې) (اس۔مو۔ج) ۱۔د کړته جمع ده۔فضول خبرې عبث لګیا اوسېدنه ۔قړتې ۔لکه : ډېرې کړتې مه کوه ۔ ۲ـد کړته اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل دے۔
**کړتے** :- (ک+ړ+تے) (اس۔مذ۔ج۔ې) چین۔شکن۔چوڼ پلېټ۔ګوخه۔
**کړتېدل** :- (ک+ړ+تې+د+ل) (مص) ۱ـډېرې کړتې کـول ۔ډېرې خبرې کـول فضول او بې واره لګیا اوسېدل۔ ۲۔بکواس کول۔بېهوده خبرې کول۔ لکه :۔ډېر مه کړتېږه۔
**کړټ** :- (ک+ړ+ټ) ګروڼجے ګروڼجے لکه د مخ څرمن ۔یا جامه ۔کوت ۔ غوښې چیچړ۔
**کړځ** :- (ک+ړ+د) +ز) (اس۔مذ ،ج ـونه) د کلالانو چجه۔چې خاورین لوښي په کنبې پخوي۔چجم۔
**کړځ** :- (ک+ړ+د+ز) (اس ۔مذ ،ج ۔ونه) کډې ۔کنده ۔ډوغـل ۔چې د سکرو جوړولو د پاره جوړولے شي۔
**کړچ** :- (ک+ړ+چ) (اس۔صوت) ۱۔د لرګي۔یا د کټ اواز ۲ـ(ق) د دوه فلزونو ( داتونو) په چغله کنبې د جنګېدلو اواز زمونږ طرف ته دې اواز ته کړنګ یا ټنګ وائي۔
ـــــ **کړچ کول** :-د کټ یا چت دلرګو (زلزلې سره) اواز پیدا کول۔
**کړچا** :- (ک+ړ+چا)

**کړچهار**:- (ک+ړ+چ+ها+ر) (اس ـصوت) د کټ اواز چې څوک پرې اچدي را اوړي) یا د چت د لرګو اواز (خصوصاً د زلزلې په وخت د ونې د ماتېدو اواز کړسهار

**کړچند**:- (ک+ړ+چ+ن+د) (صف مذ ،موـ ه) کړپند ـغرنده

**کړچېدل** :- (ک+ړ+چې+د+ل) (مص) ۱ـد کړچ کړچ اواز اېستل کړسېدل ۲ـد کټ نه (د چا په خوځېدلو راخوځېدلو) ۳ـد چت لرګي د زلزلې وغېره په وجه خوځېدل او د کړچ کړچ اواز ترې پېدا کېدل ۴ـد غاښونو په جنګېدلو سره اواز پېدا کېدل کرچېدل ـ۵ـد ټوپک تماچې نه (د بولټ په راښکلو سره) د کړچ کړچ اواز پېدا کېدل۔

**کړڅو** :- (ک+ړ+(ث)سو) کړېچې۔ هرکاره۔

**کړڅووکې** :- (ک+ړ+(ث)سو+و+کې) (اس ـمؤـج ـې) دانې چې په بدن راخېژي۔

**کړڅے** :- (ک+ړ+(ث) +ے) (اس ـمذ ،ج ـحی) لویه هرکاره ـکړڅو۔

**کړخ**:- (ک+ړ+خ) (اس ـمذ) (وـ کړخه)

**کړخه** :- (ک+ړ+خَ) (اس ـمو ،ج ـې) د غر په خوا کښې کنده یا ژور (جور) ځاے چېرته عموماً زمري وغېره پراته وي۔

کوټه لږ د زمانې هرګوره ډېر شول

لکه پړانـګ د زاوه وینـه کـړخـه (خوشحال)

**کړخے** :- (ک+ړ+خے) (اس ـمذ ،ج ـخی) د کلالانو پزاوه ـپجه۔

**کړده** :- (ک+ړ+دَ) (اس ـمو ،ج ـدې) (فارسی کښې کرده) ۱ـکړے کار ـ عمل ـکردار ۲ـبندوبست ـانتظام لکه: د کور کړده ـ ۳ـد مخ کړۀ وړۀ ـ خط و خال۔

**ـــــدمخ ورنېدل** :- شکل بدلېدل ـد مخ کړۀ وړۀ بدرنګه کېدل۔

**کړړے** :- (ک+ړ+ړ+ے) (وـ کرېړے)

**کړز**:- (ک+ړ+ز) (اس ـمذ) ډېر مانده او ډنګر حېوان کمزورے او نرے نروچکے شوے ځناور

**کړس** :- (ک+ړ+س) (اس ـصوت) ۱ـد لرګي یا د لرګي په شان څیز د ماتېدو اواز ـ۲ـد لرګي یا لښتې وغېره د ګوزار اواز ۳ـدخندا اواز ـبړق ختړ۔ قهقه

**ـــ کړس** :- (ـــک+ړ+س) ۱ـد لرګي دڅې زما د تېدو یا په بل سخت څیزباندې د لګېدو اواز ـلکه: سیلۍ سره کړس کړس ونه په مېنځ ماته شوه ـ ۲ـد خندا اواز

**ـــــ کړس په خندا کېدل** :-په قهقه خاندل ـبړق بړق په خندا کېدل۔

**ـــ کړوس** :- (ـــک+ړو+س) (اس ـصوت )„کړوس،، لفظ کړس سره په طورد تاکېد راوستے شي ـبې واره بې واره د کړس کړس اواز ـیا یو ځل د „کړس،، غټ اواز او بل ځل د کړوس په شان لږ کم اواز ـکړسهار ۲ـ لښتو لرګو سره بې واره بې واره وهلو اواز ۳ـد ټوپکو اواز ۴ـجنګ جګړه

**ـــــ کړوس جوړول په چا**:- د لرګي یا د لرګو وغېره بې واره بې واره ګزارونه په چا کول ډېر زیات وهل ټکول۔

**کړسا** :- (ک+ړ+سا)

**کړسهار** :- (ک+ړ+س+ها+ر) (اس ـصوت ـج ) متواتر د „کړس کړس،، آواز

**کړساو** :- (ک+ړ+سا+ؤ) (اس ـمذ) هغه سړے چې ټول اندامونه ئې بې نظمه او مخ ئې اوږد وي کاړساو ـکاړساغ۔

**کړساو** :- (ک+ړ+سا+وو) (اس ـمذ) لویه ږیره ـبمبل ږیره۔

**کړسپ** :- (ک+ړ+س+پ) (صف ، مذ ، موـــ ه) بوټۍ بوټۍ شوے ـقصابي شوے ټکړي ټکړې شوے۔

**کړسند** :- (ک+ړ+س+ن+د) (صف ـمذ ،موـ ه) ۱ـهغه لرګے چې کاراک اوبوده وي او زر ماتېدونے وي ۲ـډېرې خبرې کوونکے ـکړتو۔

**کړسند** :- (ک+ړ+س+ن+د) (صف ـمذ ،موــــ ه) نازک او زر ماتېدونکے څیز کروسنده۔

**کړشپ** :- (ک+ړ+ش+پ) (اس ـمذ ـج ـونه)د دوو غرونو یا د دوو لوړو په مېنځ کښې ژور(جور) ځاے یا کنده

**کړشپ** :- (ک+ړ+ش+پ) (صف ـمذ ،موـ ه) هغه سړے چې غاښونه ئې پرېوتي وي۔

**کړشپه** :- (ک+ړ+ش+پَ) د „کړشپ،، تانیث دے ۱ـهغه ښځه چې غاښونه ئې پرېوتي وي ـ۲ـبې غاښونو ـهغه چې غاښونه نۀ لري ـ لکه :ـکړشپه خولۀ

**ـــــ خولۀ** :- (ـــخ+ل+ۀ ) (پ تر ـاس ـمؤـج ـلې) هغه خولۀ چې غاښونه ئې پرېوتي وي ـبې غاښونو خولۀ (چې د غاښونو نیشتیا له کبله دننه ننه وتې وي۔

**کړغ** :- (ک+ړ+غ) (صف ـمذ ، موـ ه ) بې حس ـبې حسه

**کړغ** :- (ک+ړ+غ) (اس ـمذ ) د یخنۍ وغېره په وجه د بدن د کومې حصې بې حسه کېدنه ـاودۀ کېدنه۔

**ـــــ کېدل** :- د یخنۍ وغېره له کبله د بدن د کومې بې حصې بې حسه کېدل ـ اودۀ کېد ل۔

**کړغ** :- (ک+ړ+غ) (وـ کړاغ)

**کړغې** :- (ک+ړ+غې) د „کړغه،، (مونث) جمع ده۔

**ـــــ سترګې** :- (ـس+ت+ر+ګې) (اس ـموـج) هغه سترګې چې د کمزورۍ له کبله په قولکونو یا کوندیو کښې دننه ننوتې وي۔

**ـــــ سترګې راوتل** :-۱ـد کمزورۍ له کبله سترګې په کاموکښې ننوتل ـ ۲ـمجازاً ډېر زیات کمزورے او مانده کېدل۔

**کړغېچ** :- (ک+ړ+غے+چ ) (صنف ـمذ ، موـ ه )۱ـوارخطا ـخواس باخته ۲ـمړاوے ـپژمرده

**کړغیچکه** :- (ک+ړ+غي+چ +کَ) (اس ـمو ، ج ـچکې) مشهوره مرغۍ ـکېږکه ـ هککه ـکشکره۔

**کړک** :- (ک+ړ+ک) (اس ـمذ ، ج ـونه) د کاغے یو قسم دے ـکېږکه

**کړک** :- (ک+ړ+ک) (اس ـمذ) ۱ـنے ـنل ۲ـمجازاً ـمانده ـډنګر ـکمزورے

**کړک** :- (ک+ړ+ک) (اس ـمذ) لوے کندو چې د نلونوسر غشونه جوړ شوے وي۔

**کړک** :- (ک+ړ+ک) (اس ـمذ ،ج ـونه) هغه وړه تخته چې مات شوي هډوکی پرې تړلے شي لکینده

**کړک** :- (ک+ړ+ک) (اس ـصوت ) د کوم سخت څیز د ماتېدو اواز تړخ کړس۔

**کړکابان** :- (ک+ړ+کا+با+ن) (وـ کړبابان ) (بل)

**کړکاچ** :- (ک+ړ+کا+چ) (اس ـمذ ،ج ـونه) ضد کج ـبحثي ـپه پړه خبره خامخا وربدونه۔

**کړکاچے** :- (ک+ړ+کا+چے) (اس ـمذ ،ج ـچي) ضدي ـپه پړه اننبتونکے ـکج بحثے خبره ورانوونکے۔

**کړکاچي** :- (ک+ړ+کا+چي) (وـ کړکاچے )

**کړکار** :-(ک+ړ+کا+ر) (اس ـصوت)۱ د کړک کړک په شان مسلسل اواز ـ د لرګي یا د فلز کلکو څیزونو په خپلو کښې د جنګېدلو اواز ـ ۲ـفضولې خبرې ـ۳ـخواري ۴ـهغه کار چې څۀ ترې جوړېږي نۀ

زه ئـــې راسـتولے پـه دا کـار یم

نۀ چې شوملې شاربم په کړکار یم (حمید)

**کړکچو** :- (ک+ړ+ک+چو)

**ـــک+چو)** (اس ـمو) ۱ـکړکاچے ۲ـشور غوغا ـکج بحثي۔

**کړکړ** :- (ک+ړ+ک+ړ) (اس ـصوت) ۱ـد „کړ،، „کړ،، په شان مسلسل اواز د

سختو شیزونو د یو بل سره جنګېدلو اواز (خصوصاً هغه شیزونه چې رغړي یا حرکت کوي) ۲۔خبرې اترې۔ ګفتګو (اس)

**ـــــ کول** :- د کړکړ په شان اواز پیدا کول

**کړکړ** :- (ک+ړ+ک+ړ) (اس۔صوت) ۱۔په ګېډه کښې د هوا د ګرځېدو اواز۔ ۲۔د چیلم د څښلو اواز۔

**کړکړه** :- (ک+ړ+ک+ړ) (صف۔مو، ج۔ړې) کړکړ کوونکے۔زوړ یا زړه لکه :۔ کړکړه

**کړکړے** :- (ک+ړ+ک+ړے) (اس۔مذ، ج۔ړي) ۱۔د اوبو د راوښکلو څرخۍ۔ ۲۔کړګړے ۳۔د ګړګړي په شان هغه غونده شان اله۔چې د کشتۍ د بیاستې په سر ګرځي۔ ۴۔زړه ټانګه زوړ بائیسکل وغیره (چې د تلو په وخت کړکړ یا کړرار کوي۔)

**کړکړے** :- (ک+ړ+ک+ړے) (اس۔مذ، ج۔ړي) د کړکړ اواز پیدا کوونکے۔ (مذاقاً زړې بګۍ یا ټانګې یا زوړ سائیکل وغیره ته وائي۔)

**کړکنډے** :- (ک+ړ+ک+ن+ډے) (اس۔مذ، ج۔ډي) کال کونډے۔کال کونډې۔ هغه وړه هندوانه چې کچه وي۔دا عموماً ترخه وي۔

**کړکنه** :- (ک+ړ+ک+نَ) (اس۔مو۔ج۔نې) قلم۔

**کړکوالے** :- (ک+ړ+ک+وا+لے) (اس۔مذ) ۱۔د چرګې کړکېدنه۔د اګو اچولو نه پس چې چرګه څو ورځې دمه کوي۔او د کړک کړک اواز سره سسته پسته ګرځي ۲۔مجازاً بېکاره کېناستل کار کسب نۀ کول۔

**کړکومه** :- (ک+ړ+کو+مَ) (اس۔مو، ج۔ې) د مرغو د نیولو یوه اله۔کوړکۍ

**کړکه/کوړکه** :- (ک+ؤ+ړ+کَ) (صف۔مو،ج۔کې) هغه چرګه چې اګۍ اچول بس کړي۔او بیا د کړک کړک اواز سره سسته پسته ګرځي۔

**کړکه لاره** :- (ک+ړ+ک+لا+رَ) (پ تر۔اس۔مو) سخته او د تنګ راتګ دپاره ګرانه لار۔کړپې۔څړه لاره

**کړکۍ** :- (ک+ړ+ک+ۍ) (ه۔اس۔مو) دریچه۔د دېوال په مېنځ کښې څلور ګوټیزه دروازګۍ

**کړکۍ** :- (ک / کو+ړ+ک+ۍ) (اس۔مو) ۱۔هغه اله چې مرغۍ یا ځنګلي ځناور پرې نیولے شي لټ۔۲۔مجازاً پټه منصوبه چې چاله د دهوکې ورکولو او د هغۀ د راګېرولو دپاره جوړه کړې شي۔

**ـــــ کول** :-کلک کلک ګېرول۔په قبضه یا قابو کښې راوستل۔

**کړکے** :- (ک+ړ+کے) (اس۔مذ، ج۔کي) ۱۔د قلم د جوړولو نل یا کهے ۲۔د چیلم نچه۔

**کړکے** :- (ک+ړکے) (اس۔مذ ج۔کي) د تېښې یو قسم دے چې بوټي پرې راوباسي

**کړکے** :- (ک+ړ+کے) (اس۔مذ، ج۔کي) د قمیص یو قسم چې ګڼ پلېټونه (ګونجې / ګونځې، ټُو) لري۔او د ګېنو ټوکو نه جوړ شوے وي۔

**کړکېچ** :- (ک+ړ+کې+چ) (اس۔مذ، ج۔ونه) ۱۔جنجال۔اړیکه۔اړیچه ۲۔په خبره کښې نقص راستنه په خبره کښې خبره پېدا کونه په کار کښې خندا آچونه۔

**کړکېچن** :- (ک+ړ+کې+چ+ن) (صف۔مذ،مو۔ه) ۱۔جنجالي۔هغه سړے چې په هر کار کښې خنډ اچوي۔په روان کار کښې ګرانه پېدا کوونکے یا نقص ایستونکے کج بحث۔په پړه انښتونکے ۲۔پېچیده۔ګران

**کړکېچن** :- (ک+ړ+کې+چ+ن) (صف مذ، مو۔ه) خبرن اوسېدونکے۔اېمن

**کړکېچنه** :- (ک+ړ+کې+چ +نَ) (اس۔مو،ج۔نې) د کړکېچن تانیث دے

**کړکېچو** :- (ک+ړ+کې+چو) (صف) ماته ژبه (ځبه) توړۍ هغه چې ژبه ئې په خبرو کښې انښلي۔

**کړکېچو** :- (ک+ړ+کې+چو) (صف) ۱۔غېر صحیح او غېر صفا هغه خبره یا ژبه چې صفا نۀ وي۔چې اورېدونکے پرې سم نۀ پوهېږي۔ ۲۔(و۔کړکېچن)

**کړکیمه** :- (ک+ړ+کي+مَ) (اس۔موج۔مې) پنجره۔قفس

**کړکے وړکے** :- (ک+ړ+ک+ے+و+ړ+کے) (پ تر۔تف) حېران و پرېشان۔اشفته حال

**کړګش** :- (ک+ړ+ګ+ش) (اس۔مذ) هغه لویه څمسۍ چې د ګوړې په پخولو کښې پکارېږي۔

**کړم** :- (ک+ړ+م) (صف مذ، مو ـ ه) ۱۔غمجن۔خفه۔غم زیلے

د غم لړم به د کړم کړي

د بېلتانه په سوړو مه وهه لاسونه (ټپه)

۲۔ژوبل۔زخمي۔خوږ

**کړم** :- (ک+ړ+م) (ق۔اس۔مذ) غوځه۔پرسکون۔خصوصاً هغه ګډ یا ګډه چې لم یا د لم څۀ برخه ترې شرمخ خوړلې وي۔

**ـــــ توب** :- (ـــ تو+ب) (اس۔مذ) ۱۔کړم والے۔غمجنتوب۔غمجني ۲۔د لړم خوړنه (چچغه)

**کړمبو** :- (ک+ړ+م+بو) (اس۔مو،ج۔ګالې) د پښتو وغېره نه جوړه شوې ټوکري یا سریوښه شکرۍ چې ډوډۍ یا نور څیزونه په کښې کېښېښودے شي۔ کړومبے۔پېټار

**کړمبے** :- (ک+ړ+م+بے) (اس۔مذ) پېروي۔متابعت۔تابېګلوي

**کړمچه** :- (ک+ړ+م+چَ) (اس۔مو،ج ـــ چې) خچه ګوته۔قچه ګوته۔کچه ګوته۔ د لاس د ټولو نه وړه ګوته۔

**کړمچے** :- (ک+ړ+م+چے) (و۔کړمچے)

**کړمڅے** :- (ک+ړ+م+څ ے) (اس۔مذ،ج۔چي) د اس پیاړمه څوږ

**کړمن** :- (ک+ړ+م+ن) (صف مذ، مو۔ه) ۱۔مصیبت وهلے۔په مصیبت یا تکلیف کښې ګېر خراب حال ۲۔غمزده۔غمجن۔۳۔لړم خوړلے۔ هغه چې لړم چیچلے وي

**ـــــ تواب** :- (ـــ تو+ب)

**ـــــ والے** :- (ـــ وا+لے) (اس۔مذ) ۱۔مصیبت زدګي۔په مصیبت کښې د ګېر سړي حالت۔بدحالي۔۲۔غمجني۔غمګیني ۳۔حاجتمندي۔موتازي

**ـــــ کول** :- ۱۔په مصیبت کښې لخته کول درد مند کول ۲۔غمجن کول۔ غمګین کول۔کړم کول ۳۔د لړم خوړل۔

**کړمن** :- (ک+ړم+ن) (صف۔مذ،مو۔ه) شوګیر۔ترخوبه۔بېدار۔بې خوبه

په غم غمژن وم په خوب کړمن وم

خلاص له غمونو ستا په دیدن وم (خوشحال)

**کړمنوالے** :- (ک+ړ+م+ن+وا+لے) (اس۔مذ) (و۔کړمنتوب)

**کړمه** :- (ک+ړ+مَ) (اس۔مؤ) هغه ښځه چې خاوند ئې ژوندے وي۔د ژوندي (جوندي) ښځتن ښځه۔د شته خاوند ښځه۔

**کړمیازه** :- (ک+ړ+م+یا+زَ) (اس۔مو) د حېوان (ځناور) د خولې لاړې

**کړمېزن** :- (ک+ړ+مې+ز+ن) (صف۔مذ، مو۔ه) هغه بني ادم یا ځناور چې د پوزې نه ئې هر وخت قڼ یا اوبه بهېږي۔قرمېزن۔

**کړمېخري** :- (ک+ړ+مې+زي) (اس۔مو جم) د پوزې قڼ یا اوبۀ۔د پوزې ګند۔

**کړن** :- (ک+ړ+ن) (اس۔مذ) عمل۔کړۀ۔کار

**کړنج** :- (ک+ړ+ن+ج) (اس۔صوت) د فلزي (دهات) د څیزونو په خپلو کښې د جنګېدلو اواز۔کړنګ

**کړنجا** :- (ک+ړ+ن+جا) (اس۔صوت) د کړنچ کړنج مسلسل اواز کړنګا کړنجهار

**کړنجهار** :- (ک+ړ+ن+ج+ها+ر) (اس۔صوت) د کړنج کړنج مسلسل اواز د فلزي لوښو یا د نورو فلزي څیزونو په خپله کښې د مسلسل جنګېدلو اواز۔ کړنګهار

**کړنج** :ـ (ک+ړ+ن+ج) (اس ـ صوت) (و ـ کرنج)

**کړن چاره** :- (ک+ړ+ن+چا+رَ) (ب تر ـ اس ـ مؤ ـ ج ـ ړې) کارنامه ـ کارستان

**کړند**:- (ک+ړ+ن+د) (اس ـ مذ ،ج ـ ان) کارکونکے ـ کارکن ـ کاريګر

**کړند** :- (ک+ړ+ن+د) (صف، مذ ، مو ـ ه) ۱ـ سرګردانه او پرېشانه ۲ـ سست ، هغه څيز چې تېکے ئې ارت وي ځکه دغه څيز په کښې خوځي را خوځي ـ

**ـــ توب** :- (ـــ تو+ب)

**ـــ والے** :- (ـــ وا +لے) (اس ـ مذ) ۱ـ سرګرداني او پرېشاني ۲ـ د يو څيز په خپل ارت تېکي کښې خوځېدنه را خوځېدنه ـ

**کړندول** :- (ک+ړ+ن+د+و+ل) (مص) ۱ـ حېرانه او پرېشانه کول ۲ـ تکليف رسول ـ تنګول ـ

**کړنده** :- (ک+ړ+ن+د) (اس ـ مو) ۱ـ هغه سپينه لېسدازه ماده کومه چې د لنګېدلو په وخت د حيوان د بچي راوړلو د ځاے نه راووځي ـ ۲ـ هغه سپينه بلغمي ماده چې د جلاب په ذريعه راوېستے شي ـ

**کړندېدل** :- (ک+ړ+ن+د+ے+د +ل) (مص) ۱ـ حېرانه پرېشا نه کېدل ۲ـ (په تېکي وغېره کښې) ازادي سره خوځېدل راخوځېدل ـ (د تېکي د ارت والي په وجه) ۳ـ تکليف رسېدل ـ دوک رسېدل

**کړنګ** :- (ک+ړ+ن+ګ) (اس ـ صوت) د فلزي (د دهات) لوښو وغېره په خپله کښې د جنګېدلو اواز ـ

**ـــ کړنګ** :- (ک+ړ+ن+ګ) (اس ـ صوت) د کړنګ په شان مسلسل اواز ـ کړنګا ـ کړنجا ـ

**ـــ کړونګ** :- (ـــ ک+ړو+ن+ګ) (اس ـ صوت) د کړونګ صوتي لفظ کړنګ سره د تاکېد د پاره راوستے شي ـ يعني په زوره د کړنګ اواز سره لړ ډوب ,,د کړونګ اواز ـ د فلزي څيزونو د جنګېدلو په زوره رو وره اواز ـ

**کړنګ** :- (ک+ړ+ن+ګ) (صف ـ مذ ، مو ـ ه) سخت ـ شديد

**ـــ ژمے /جمے** (ـــ ژ/ ج+مے) (پ تر ـ اس ـ مذ ،ج ـ مي) سخت ژمے (جمے) په ژمي ـ جمي کښې ډېره زياته سړزي (يخني)

**کړنګ**:ـ ۳ (ک+ړ+ن+ګ) (اس ـ مذ) پلوشه ـ څريکه

سپوږمېيه! کړنګ وهه راخيژه

يار مې د ګلولوکوي ګوتې رېبينه (ټپه)

**کړنګ** :- (ک+ړ+ن+ګ) (اس ـ مذ) هغه اوږد لرګے چې د څاروي په غاړه کښې تړلے شي ـ

**کړنګول** :- (ک+ړ+ن+ګ+ؤ+ل) (مص) د کړنګ کړنګ اواز (د څۀ ځخمه) د ښتل فلزي (د دهات) څيزونه (لوښي وغېره) په خپله کښې جنګو لو سره اواز ترې پېدا کول ـ لکه: ديګونه کړنګول

**ديګونه ـــ** :- (دي +ګو+نَ ـــ) ۱ـ (لفظي) ديګونه په کوم بل فلزي څيز وهل چې کړنګ کړنګ اواز ترې ووځي ۲ـ مجازاً ديګونه پخول په ديګونو کښې وريژې پلاو پخول د خلکو مېلمستيا کول ـ

**کړنګه** :- (ک+ړ+ن+ګَ) (اس ـ مو ،ج ـ ګې ) کړکه ـ هغه چرګه چې اګۍ نۀ اچوي ـ

**کړنګهار**:- (ک+ړ+ن+ګ+ها+ر) (اس ـ صوت) پرله پسې د کړنګ کړنګ اواز ـ د کړنګ کړنګ مسلسل اواز ـ کړنجهار ـ

**کـړن لاره**:- (ک+ړ+ن+لا+رَ) ( پ تـر ـ اس عمـا ،مـذ ، ۲ مـو) پروګـرام ـ دستورالعمل ـ

**کړنے** :- (ک+ړ+نے) (اس ـ مذ ، ج ـ نې) حلال ـ جائز

**کړو** :- (ک+ړو) (اس ـ مذ) د شوملو نـه جـو ړشـوے نخکـړے ـ کـړے لاوڼ د خوراک مشهور څيز دے ـ

**کړواس** :- (ک+ړ+وا+س) (اس ـ مذ ،ج ـ ان) کړساو ـ کاړساو ـ هغه سړے چې مخ ئې اوږد او نور اعضائې غېر متناسب وي ـ

**کړوب** :- (ک+ړو+ب) (اس ـ مو) هغه ښوروا چې غوړي نۀ لري يا په ډېګ کښې لاندې پاتې شوې ښوروا ـ کړوبے ـ کنوبے

**کړوب** :- (ک+ړو+ب) (صنف، مذ ، مو ـ ه) کب واله ـ کبے ـ کړوب ـ کبړے

**کړوبړ**:- (ک+ړو+ب+ړ) (ب تر ـ قف ) کروفر ـ دبداب ـ دبدب

**کړوبے** :- (ک+ړو+بے) (اس ـ مذ ،ج ـ بي) هغه لوبه کنده يا جور (ژور) ځاے کوم چې غرونو په مېنځ کښې او نمرونه تر ماتايا وي ـ

**کړوپ** :- (ک+ړو+پ) (صف ـ مذ ، مو ـ ه) ۱ـ کب واله ـ کبړے ـ کبے ۲ـ داسې راتيټ شوے ـ چې ملائې په بره را ووځي ـ ۳ـ د کوم څيز د مېنځ حصه چې بهر ته راوتې وي ـ لکه : کړوپ سړک

**ـــ توب** :- (ـــ تو+ب)

**ـــ تيا** :- (ـــ ت+يا)

**ـــ والے** :- (ـــ وا+لے) (اس ـ مذ) ۱ـ کب والے ـ کبړي توب هغه حالت چې په ملا کښې کب راوتلے وي ۲ـ د کوم څيز د مېنځ حصه بهر ته راوتل ـ

**کړوپول** :- (ک+ړو+پ+ؤ+ل) (مص) ۱ـ کبُړے کول ـ په ملا کښې کوږوالے پېدا کول ـ ۲ـ داسې راټيټول چې ملائې په بره راووځي ۳ـ په مېنځ کښې لوړوالے پېدا کول لکه : سړک کړو پول ـ

**کړوپه** :- (ک+ړو+پَ) (اس ـ مو، ج ـ پې) ۱ـ د کجورې د ونې په تنه کښې غوټه ـ ۲ ـ ډوغل ـ کنده ـ

**کړوپېدل** :- (ک+ړو+پ +ې+د+ل)(مص) ۱ـ کوبے کېدل ـ کُب راوتل ۲ـ داسې راغونډېدل ـ چې ملائې په بره راوتې وي ـ ۳ـ د کوم څيز د مېنځ برخه په بره راوتل ـ

**کړوتی** :- (ک+ړ+و+ت+ی) (اس ـ مو) يو قسم ګياه ده چې اکثره د ولو په غاړه پېدا کېږي ـ

**کړوچ** :- (ک+ړو+چ) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه)کنده ـ کمر ـ خندق

د جـهان لـه لوړو تېښته څه سعيده

چې د ورانديې د تيارو درته کړوچ دے (سعيد)

**کړوس** :- (ک+ړو+س) (اس ـ صفت) د لرګي (يا د لرګي په شان د کوم څيز د ماتېدلو اواز ـ کړس ـ

**کړوستے** :- (ک+ړو+س+تے) (اس ـ مؤ ـ ج: تې) پلې ـ دانو واله پلې لکه مشنګ وغېره ښکرے کړپس ـ

**کړوسند** :- (ک+ړو+س+ن+د) (و ـ کروسند)

**کړوسی**:- (ک+ړ+و+س+ی) (اس ـ مؤ ـ ج) د ,,کړوسے ،، تانيث دے ـ

**کړوے** :- (ک+ړ+و+سے) (اس ـ مذ ،ج ـ سي سيان ) د نوسي (نمسي) زوے ـ

**کړولے** :- (ک+ړ+ؤ+لے)(اس ـ مذ ،ج ـ لي) ځوان ـ تکړه ـ طاقتور او قوت واله ځوان ـ ښکلے او خوش رنګه ځوان ـ

**ـــ ځوان**:- (ـــ (د) ز+وا+ن)(پ تر ـ اس ـ مذ ،ج ـ ان) قوي ځوان ـ تکړه او غښتلے ځوان ښکلے او خوشرنګه ځوان

**کړوم** :-(ک+ړو+م) (اس ـ مع) په بلوچستان کښې سرې لنکا ته وائي ـ

**کړومبه** :-(ک+ړو+م+بَ) (اس ـ مو) ۱ـ نرې اوبجن ماستۀ د مست ويا پنېرو اوبۀ ۲ـ مجازاً هغه پخه ښوروا چې روغن (غوړي) نۀ لري ـ

**کړومبے** :- (ک+ړو+م+بے) (اس ـ مذ ،ج ـ بي) د وښتو وغېره نه جوړه شوې ټوکرۍ وړه سريوښه ټوکرۍ ـ وړوکے پيټار ـ کرمبو ـ

**کړون** :- (ک+ړ+و+ن) (اس ـ مذ)کړن ـ کړنه ـ عمل ـ کار ـ کردار

**کړونګه** :- (ک+ک+ړو+ن+ګ) (اس ـ مو ،ج ـ ګې) هغه ښوروا چې غوړي په کښې نۀ وي يا ډېر لږ وي ـ

**کړونګه**:- (ک+ړو+ن+ګَ) (اس ـ مو ،ج ـ ګې) لوے خاورين لوښے ـ لويه تالۍ

**کړونګے** :- (ک+ړو+ن+ګے) (اس ـ مذ ،ج ـ ګي) ابشار

**کړونــه** :- (کَ + ړَ + ؤ+ نَ)(حمـص)(۱) تکلیـف ورکونـه، کړاو ورپېښـوؤنه پــه عذابونه، ازار رسؤنه (۲) کوم ځیز په اور نیؤنه او چورلؤنه.

**کړونے** :- (کْ + ړُو + نَے)(اس ، فا ، ج ــ نې) کوونکے ، کار کوونکے ، عمل کوونکے

په ښېرو په دعا څۀ شي کړونے خدا ے دے

چې خدا ے نۀ کا ښېرې څۀ کا دعا څۀ کا (رحمان)

**کړوه** :-(کَ + ړْ + وَ)(اس ــ مو ، ج ــ وې) د ټوکې یوه ټوټه ، د ټوکې ریښه

**کړوۍ** :- (کَ + ړْ + وَ + ئ)(اس ــ مو) وړه ټوکرۍ ، وړه شکرۍ

**کړوېزن** :- (کَ + ړْ + وې + ز + نْ) (و ـــ کړمېزن)

**کړوېزنه** :- (کَ + ړْ + وې + ز + نَ) (و ـــ کړمېزنه)

**کړۀ** :- (کْ + ړ) (اس ــ جم) کار ، عمل ، کردار ، فعل .لکه : خپل کړۀ ئې وکړل

**کړه** :- (کَ + ړَ) (اس ــ صوت) د چرګو د شړلو اواز ، کړې ،

**کړه** :- (ک + ړَ) (اس ــ مو ، ج ــ ړې) یو قسم زیړ رنګې مرغۍ ده.

**کړه** :- (کَ + ړَ) (اس ــ مذ ، ج ــ ړې)(۱) د حلقې په شکل د لاس یو کالے دے .چې د عـامو ښنګړو نـه غټ وي .او ارتېدے تنګېدے شي .د سرو او سپینو دواړو نه جوړولے شي .(۲) د اوسپنې نه جوړه شوې حلقه چې ملنګان ئې په لاس یا په مټ کښې اچوي . (۳) د حلقې په شان هر غونډ ځیز.

**کړهاند** :- (کَ + ړ+ ها + نْ + دْ) (صف مذ ، مو ـــ ه) حېرانه او پرېشانه ، په مصیبت کښې ګېر ، په تکلیف کښې اخته.

**کړه پنډه** :- (کْ + ړَ + پَ + نْ ډَ)(صف ــ مو) هغه لار چې کندرې کوندرې وي.لوړه ژوره (جوره) لار.

**کړه کۍ** :- (کَ + ړَ + کَ + ی) (اس ــ مو) (۱) یو قسم لوېه چاړۀ (۲) یو قسم تېشه (۳) یو قسم چین دار قمیص

**کړه وړ** :- (ک + ړَ + ؤ + ړْ) (اس ــ مو) لوظ سوګند ، تړون ، ژبه ، څبه

**کړۀ وړۀ** :- (کْ + ړ + وْ + ړ) (پ تر ــ اس جم)(۱) شکل شباهت ، خط و خال ، د مـخ د حسـن ځیزونـه (سـترګې ، وروځـې ، اننګـي ، خولـۀ ، شـونډې وغېره)

که مخ دې نمر کړمـه ، د نمر کړۀ وړۀ نشته

که دې سنبل کړمه،سنبل مشکین نۀ دي عبدالقادر

(۲) عمل ،کار ،عادتونه ، خصلتونه افعال و اطوار.

**کړهے** :- (کَ + ړَ + هَے) (اس ــ مذ ، ج ــ هي) (۱) هغه اوسپنیز ارت خولے لوے لوښے چې په کښې متیایانې او نور ځیزونه تلولے شي .کړیے ، کړئے (۲) د ښانک په شان د اوسپنې لوے لوښے چې کباب په کښې تلولے شي.

**کړي** :- (کَ + ړي) (اس ــ مو) یو قسم پخکړے،لاوړ، چې د شوملو (شلومبو) او نورو ځیزونو نه جوړولے شي.

**کړیچ** :- (کْ + ړِي +چْ) (اس ــ مذ ، ج ــ ونه) (کاکړ) سخت او ګران کار

**کړیخ** :- (ک + ړي + (ت) س) (صف ، مذ ، مو ـــ څه) ګران ، دشوار ، سخت ، ستونځه ، اړیکې

**کړیخ** :- (ک + ړي + (ت) س) (اس ــ مذ) د څناورو د ځیګر چینجے

**کړیخکه** :- (ک + ړ + (ت) س + کَ) (اس ــ مو ، ج ـــ کې) یو قسم بوټے دے چې پلنې او سرې بخنې پاڼې او غونډ وېخ لري.

**کړیخي** :- (ک + ړي + (ت) سي) (اس ــ مو) (۱) توره تتۍ ، چنداړ (غرئیزه تورانۍ) (۲) ځینې خلک تورانۍ (تورانۍ ، تورانه) ته هم وائي.

**کړیخی** :- (ک + ړے + (ت) څ + ی) (اس ــ مو) (۱) هرکاره ، کړخو (۲) (ق) لوېه چمچه یا کاشغه

**کړیخے** :- (ک + ړي (ت) سے) (و ــ کړیږ)

**کړیغ** :-(ک + ړي + غ) (صف مذ ، مـو ــ ه) کمزورے ، ضعیف ، مانـده ، ډنګر

**کړیکه** :- (ک + ړي + ک) (اس ، مو ، ج ـــ کې) چغه ، کریغه ، کریکه

**کړې** :- (ک + ړې) (اس ، صوت) د چرګو چرګانو د شړلو اواز .شي ، کړه

**کړېچۍ** :- (ک + ړې + چ + ی) (و ـــ کړېخۍ)

**کړېړے** :- (ک + ړې + ړے)

**کړېـړے** :- (ک +ړې + ړے) (اس ــ مـذ ، ج ــ ړي) مشـهور کـورنے چینـجے (حشره) کیرړے ، (چې د شپې نري اوازونه وباسي)

**کړېزن** :-(ک +ړې + ز + ن)(صف ، مذ ، مو ــ ه) ناجوړه څاروے ، ناجوړه څناور.

**کړېس** :- (ک + ړې / ړے + س) (و ــ کړیسۍ)

**کړېستن** :- (ک + ړې + س + ت + نْ)(صف ، مـذ ، مـو ـــ ه) ګنـده او خیـرن اوسېدونکے ، خیچن

**کړېسۍ** :- (ک + ړې + س + ی) (اس ــ مو)د دانو واله ځیزونو پلے .پلے ، کړیس

**کړېنګ** :- (کْ + ړي + ن + ګ)(صف ، مذ ، مو ــ ه) هغه سړے چې اوږې ئې راوتې وي.مجازاً : بې ډوله کوږ ووږ سړے.

**ـــ پړېنګ** :- (ـــ پ + ړي + ن + ګ)(پ تر ، صف مذ ، مو ـ ه ـ ه) کوږ ووږ ، بې ډوله ،بې تناسبه (د بدن اعضاء)

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے)(اس ــ مذ) د اُوږو راوتنه. بې ډوله کوږ ووږ بدن.د اعضاو کوږوالے او بې ډولې.

**کړېنګونګ** :- (کْ + ړي + ن + ګ + و+ن+ګ) (و ــ کړېنګونه)

**کړېنګونه** :- (کْ + ړي + ن + ګ + و + نَ)د اوږو بهر ته را وښکنه.

مجازاً : د بدن د اعضاو کاږۀ واږۀ او بې ډوله کونه.د بدن یو طرف ته کږونه

**کړېنګوونکے** :- کْ +ړي+ن+ګ+وو+ن+کے (اس ، نا ،مذ ، ج ــ کي) د اوږو بهر ته راوېستونکے. مجـازاً : د بـدن کـوږ ووږ او بـې ډولــه کوونکے.

**کړېنګے** :- (کْ + ړي + ن + ګے)(اس ، مذ ، ج ــ ګي)(و ــ کړېنګ)

**کړېنګېدل** :- (کْ + ړي + ن + ګې + د + ل)(حمـص) د اوږو بهـر تـه راوتـل . مجازاً : د بدن د اعضاو کاږۀ واږۀ او بې ډوله کېدل.

**کړېنګېدنګ** :- (کْ +ړي+ن+ګې+د+ن+ګ) (و ــ کړېنګېدنه)

**کړېنګېدنه**:- (کْ +ړي+ن+ګې+د+ نَ)(حمص) د اوږو بهر ته راوتنه. مجازاً : د بدن کوږ ووږ او بې ډوله کېدنه.یو طرف ته کږېدنه.

**کړۍ** :- (کَ + ړَ + ی) (۱) د کړه تصغیر دے.(۲) پـه چاربېتـه وغېـره نظـم کښې یو بند (په هندي کښې هم د نظم یو بند ته ,,کړۍ ،، وائي) (۳) د زنځیر یا د زغرې وغېره یوه حلقه. (۴) پـه چـت کښـې د شـهتیر دپاسه د اچولو برګه.(په برګه او کړۍ کښې عموماً دا فرق کولے شي. چې کړۍ څلور ګُټه په اره نېغ ځیرلے شوے وي.او برګه هسې تراشلې او سپینه کړې وي او تقریباً غونډه وي)

**کړۍ** :- (کَ + ړَ + ی) (اس ــ مو) (۱) هغه اوسپنیزې حلقې چې مجرمانو تـه په لاس کښې اچولے شي.چې عموماً ورته هتکړۍ وائي. (۲) د پښو یو کالے هم دے.

**هت ـــ** (هَ + تْ ـــ) (ه پ تر ، اس ــ مو ــ ج) د مجرمانو د تړلو دپاره په لاس کښې د اچولو اوسپنیزې حلقې.دا جرنده کېږي او پرانستے کېږي. (هـ ــ هتهکړي ، هته= لاس)

**کړۍ** :- (کَ + ړَ + ی) (صف ــ مو) درسته ، ټوله ، همه ، کړۍ ،دا لفظ د

ظرف زمان ځینو الفاظو سره راځي.

**ــــشپه** :- (ــشْ + پَ) (پ تر، اس، ظر ـ مو) درسته شپه، ټوله شپه، کړی شپه

**ــــــورځ** :- (ــــــوُ + رَ + دْ) زْ) (پ تر ـ اس ظر، مو) درسته ورځ، ټوله ورځ، تمامه ورځ، کړی ورځ

**کـړے** :- (ک + ړَے) (فعـل) د ,, کـړل،، مصـدر نـه فعـل دے ـ د ,, کـولے،، پـه معنٰی ـ لکه: که دا کار نشې کړے نو ـ

**کړے** :- (ک + ړَے) (صف، اس، مذ، ج ـ کړي) د ,, کړل،، مصدر نـه اسم مفعول دے ـ چې د صفت کار ورکوي ـ

**کړے** :- (کُ / کُو + ړَے) (اس ـ مذ، ج ـ ړي) د غلې وغېره يـوه پيمانـه ده ـ چې د اوړي ځلورمه برخه وي ـ کوړے ـ

**کـزن** :- (ک + ز + ن) (انگ، اس، مذ، ج ـ ان) د تـرۀ زوے ـ تربـور ـ د ترور زوے ـ د ماما زوے ـ

**کژ** :- (ک +ژ) (ف ـ صف، مذ، مو ـ ه) کوږ، کوگ، کوژ، خمدار، کج

**کژبل** :- (ک +ژ + ب + ل) (اس ـ مذ) مېلو، خرس

**کژدم** :- (ک +ژ +د + م) (ف، اس ـ مذ، مو ــــ ان) کړې لکۍ والا، لړم

په سموم مجموم کښې بند په لنبو سوځي

اژدها کـــژدم ئې زوړند پـــه اجساد شي (حافظ)

**کـژدم** :- (ک +ژ + د + م) (ف، اس ـــ مـذ) (۱) لـړم، عقـرب (۲) د اسـمان پـه دولسو برجونو کښې د يو برج نوم ـ

چې مې کښېوزي خيال په زړۀ د کړو وروځو

د کـــژدمـــو نېش تـــه زړۀ بـــرابـــر نيسم (حافظ)

**کژدنه** :- (ک +ژ + د + ن) (و ـــ کوژدن)

**کږ** :- (ک +گ / ژ) (۱) وــ کوږ (۲) د کـوږ مخفف شـکل دے ـ عمومـاً د سابقې په طور نورو الفاظو سره راځي ـ لکه کړلېچ

**ــــتيا** :- (ــــــت + يا) (اس ـ مذ) کوږ والے، کجے، خم

**ــــلړلے** :- (ــــــل + ړ + لے) (اس ـ مذ) د کچه کنډلو يو قسم نقش دے د پياخلے يو قسم دے ـ

**ــــلېچے** :- (ــلې / لي + چے) (پ تر، اس ـ مذ، ج ـ چي) گُټ پېر ـ

**ــــوالے** :- (ــــــوا + لے) (اس ـ مذ) کوږ والے، کجي، خم

**ــــوبلنے** :- (ـــوې + ل + نے) (پ تر، اس ـ مذ) کاږۀ، باديان، سونف (اصلاً کاږۀ او وبلنے دوه جدا جدا ځيزونه دي چې د دارو په طور استعمالېږي)

**کږدلی** :- (ک +گ / ژ + ک + ل + ی) (اس ـ مو) د جولا جاله ـ

**کــږدی** :- (ک + گ / ژ + د + ی) (اس ـــ مــو) (۱) د کوچيـانو تـور تنبـو کېږدی ـ غژدی (۲) مجازاً د عـارضي اسـتوگنې دپاره ځپر وغېره تـه هم وئيلے شي ـ

**کږسانګه** :- (ک + گ / ژ +سا + ن + گ) (اس ـ مو) اس ډنډی، د اسونو هاکي

**کږکے** :- (ک +گ / ژ +کے) (اس ـ مذ، ج ـ کي) د گډې د اوږو کوږ هډوکے

**کږکے** :- (ک + گ / ژ + کے) (اس ـ مذ، ج ـ کي) د شولو يو مرض دے چې وږے او دانې ئې اول تورې او بيا وچې شي ـ

**کږکے** :- (ک + گ / ژ + کے) (اس ـ مذ، ج ـ کي) د هاتي وانو هغـه الـه چې هاتيان پرې شړي ـ چنگ، کنجکے

**کږکے** :- (ک + گ / ژ + کے) (اس ـ مذ، ج ـ کي) هغه الـه چې اهنگران پرې د بټۍ نه گرم شوے ځيز راکاږي ـ

**کږل** :- (ک + گ / ژ + ل) (مص) (۱) سپېرۀ گڼـل ـ بـدفال تـرې اخېسـتل بدفالے (بدپالے) گڼل ـ (۲) بد وئيل، مذمن کول

په خاطر باندې مې نۀ دي پروتې لړې

ځـو خاطر مې لټوې هونبره مې کړې (خوشحال)

**کړلکه** :- (ک + گ / ژ + ل + کَ) (اس ـ مو، ج ـ کې) چاړۀ، چړوکۍ

لاړ پرې نشته د مخلص له برندو سترگو

پـــه هـــر ځـــاے ئې راتـــه ونيوه کړلکه (حسين)

**کړلېچ** :- (ک + گ / ژ + لې + چ) (اس ـ مذ، ج ـ ونه) کوږوالے، خم، کجي

**ــــپيدا کول** :- (۱) کوږوالے پيدا کول، په کوم کار يا لار، ديوال وغېره کښې خم پيدا کول (۲) په کار کښې خنډ پيدا کول ـ اړيکه پيدا کول

**ــــورکول** :- کوږوالے ورکول، کږول، خم ورکول ـ

**کړلېچه** :- (ک +گ / ژ + لې + چَ) (اس ـ مو، ج ـ چې) د ,, کــــړلېچ،، تانيث دے ـ

**ــــلار (ه)** :- (ـــلا + رُ / رَ) (پ تر ـ اس ـ مو، ج ـ ړې) (۱) کړه لار، کږه وږه لار، هغه لار چې په کښې ډېرې تاوېدنې وي ـ (۲) مجازاً مشکلات، خنډان، اړيکې (۳) ناسمه لار، خرابه لار، خراب روش ـ

**کړلېچے** :- (ک + گ / ژ + لې + چے) (پ تر ـ صف) هغه سړے چې لېچه يا لېچې ئې کږې وي ـ کوږ لاسے ـ

**کړلېچے** :- (ک + گ / ژ + لې + چے) (۱) د ,, کړلېچه،، جمع ده ـ (۲) د ,, کړلېچه،، اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل ـ

**کړلے** :- (ک + گ / ژ + لے) (اس مف مذ، جـــــ لي) (۱) سپېرۀ گڼلے شـوے ـ بدفالے (بدپالے) گڼلے شوے ـ منحوس گڼلے

جـــدائي هسې بې نيـــازه ده کړلې

چې گلرنگې بشري که د خاورو ځلے (حافظ)

(۲) مذمت شوے، مذموم

تـــل بـــه شـړلے، لـېړلے تا يم

بيا په دا کار کښې کړلے تا يم (خوشحال)

**کړندي** :- (ک +گ / ژ + ن + دي) د ,, کړندے،، تانيث دے ـ

**کړندے** :- (ک +گ / ژ + ن + دے) (صف، اس، مذ، جـــــ دي) قنـدهار (۱) هغـه سـړے چې د کـوم مـرض لـه کبلـه کمـزورے او مانـده شـوے وي ـ (۲) کج بحث سړے، اړک ـ

**کړنه** :- (ک + گ / ژ + نَ) (حمص) (۱) سپېرۀ گڼنه، منحوس گڼنه (۲) بد وئينه، مذمت کونه ـ

**کـړو** :- (ک + گو / ژو) د ,, کـاږۀ،، اضـافي او مجـروري وغېـره (مغيـره) شکل ـ

**دـــــاوبۀ** :- (ـــاو + ب) (پ تر، اس ـ جم) د کړو عرق، عرق باديان

**کړوړے** :- (ک + گو / ژو + ړے) (اس ـ مو، ج ـ بي) ناروغـه، ناجوړه، کمـزورے، مانده

**کړول** :- (ک + گ / ژ + و + ل) (مص) کوږ کول ـ په کوم ځيز کښې کوږوالے پيدا کول ـ خم ورکول ـ کجي پيدا کول ـ (په کوم ځيز کښې)

**خبره ــــ** : په خبره کښې کوږوالے پيدا کول ـ خبره بل طرف ته اړول ـ د خبرې نه (سره د پوهې) غلط مفهوم اخېستل خبره ورانول ـ

**کړونه** :- (ک + گ / ژ + و + ن) (حمص) کوږ کونه، کوږوالے پيدا کونه ـ کج کونه، خميده کونه، خم راوستنه ـ

**کړوونکے** :- (ک + گ / ژ + وو + ن + کے) (اس فا ـ مذ، ج ـ کي) کوږ کوونکے، کوږوالے پيدا کوونکے ـ خم ورکوونکے، کج کونکے ـ

**کړوه** :- (ک + گ / ژ + و) (اس ـــ مو، جـــــ وې) کوږوالے، اوښتنه

دريښنه مه شه د بخت کړوه

خوني زمرے کا پـــه تاړوه (خوشحال)

**کړوښتے** :- (ک +گ/ژ+وې +خ / ش + تے) (صف ـــ مذ) پوخ عمر سړے، کهول، چې لاډېر بوډا شوے نۀ وي ـ ميانه سال ـ

**کږه** :- (ک + ګَ / ږَ) (اس ــ مو ، ج ــ ږې) رسکېږنه ، ذلت ، ادبار

**کــږه** :- (ک + ګ / ږ) (صـفـ ــ مـو ، ج ـــــ ږې) (۱) خـم والــه ، د ,, کــوږ ،، (صفت) تانيث دے (۲) غلط کار ، ګناه

کل کـــږې درتـــه لـــه خپــلو کـــړو رسي
ساز سرود له ډمه نۀ مومي غوږ مروړے (حميد)

**ـــــ پګړۍ** :- (ـــــ پ + ګ + ړ + ی) (پ تر ـ اس ـ مو) پـه يـو طـرف کـوږ

ترلے شوے پټکے ـ چې د فخر او شان نخښه ګڼلے کېږي
څۀ ګلرنګ مخونه په دا خاورو کښې بدرنګ شول
څـو د خيـال کــــږې پــګړۍ يــاد لـــري جهان (خوشحال)

**ـــــ کېدل** :(و ـــــ ورځ کږېدل) لکه : په مونږ اوس کږه شوې ده ـ

**ـــــ ږه** :- ( ـــــ و + ګَ / ږَ) (پ تر ، صف ، مو ، ج ـ کږې وږې) د ,, کـوږ ووږ ،، تانيث دے ـ ,وږه ،، ورسره د تاکيد دپاره راغلے دے ـ يعني ډېره زياته کږه ـ چې ډېر کوږوالے يا کجي لري ـ يا چې ډېر ځايه کږه وي ـ

**ـــــ وږه کېدل** :د کوم ساه واله څيز په خپل بدن کښې په خپله کوږ والے پېدا کول د ناز او کبځ علامت دے ـ

**پــه ـــــ لار تلل** :(۱) په داسې لار تلل چې نېغه نۀ وي او په مېنځ کښې ئې کوږوالے وي ـ (۲) (مجازاً) په غلطه لار تلل ـ د ګناه يا د شر کارونه کول ـ داسې کارونه کول چې د اخلاقو له رويه سم نۀ وي ـ

**کږه** :- (ک + ګَ / ږَ) (اس ــ مو ، ج ــ ږې) د ,, کوږ ،، (څناور) تانيث دے ـ

**کږې** :- (ک + ږې / ګې) د ,, کږه ،، جمع صيغه ده ـ

**ـــــ خبرې اروېدل / اورېدل** :-اړولې خبرې اورېدل ، غلطې خبرې اورېدل

د هغو د خولې کږې خبرې اورم
چې خــبره ورتـه نۀ کړه سمه ما (خوشحال)

**ـــــ رسېدل** :مجازاً : تکليف رسېدل ـ

کل کـــږې درتـــه لـــه خپــلو کـــړو رسي
ساز سرود له ډمه نۀ مومي غوږ مروړے (حميد)

**کږېدل** :- (ک + ګې / ږې + د + ل) (مص) (۱) (په ځان کښې) کوږوالے پېدا کول کج کېدل ، کوږ کېدل ـ (۲) بدېدل ، خراب کېدل

**د چا خواته ـــــ** :- د چا طرف ته مېلان کېدل ـ د چا مرسته يا پره کول ـ د چا رائې سره رائې برابرېدل ـ

**ورځ ـــــ** :(و +ر+ (د ) + ز ـــــ) ورځ بدېـدل ، بدقسـمتي راتلـل ـ نصـيب خوارېدل ـ

**کږېدن** :- (ک + ګې / ږې + د + ن) (و ـــ کږېدنه)

**کږېدنه** :- (ک +ګې / ږې + د + نَ) کوږ کېدنه ،خميده کېدنه ،کج کېدنه

**کږېدونکے** :-(ک +ګې / ږې + دو+ ن + کے) (اس ــ فا ، مذ ، ج ـــ کي) کـوږ کېدونکے ، خميده کوونکے ، کج کېدونکے

**کــږۍ** :- (ک + ګ / ږ + ی) (اس ـــ مـو) د بـوجۍ ، خلتـې د مشـک وغېـره د خولې بندولو څيز ـ

**کس** :- (ک + س) (ف ـــ اس مذ ، ج ـــ ان) تن ، وګړے ، فرد ، يو بني ادم

**ـــــ وناکس** :- (ـــــ (و) نا+ک + س) (فپ تر ـ اس ـــــ مذ) اعلى او ادنى ، خاص او عام ـ هر کس که ښۀ وي که بد وي ـ

په ادا خپلې راستۍ د کس نا کس کړم
ګنـه نـۀ لـــرم هـــر ګـــز د چا پروا (حميد)

**بندي ـــــ** :- (ب + ن + دي ـــــ) (پ تر ـ اس ـــــ مذ) هېڅ يـو بني ادم ، هېڅوک لکه : هلته بندي کس نۀ وۀ ـ

**بې ـــــ** :- (بې ـــــ) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغــه چــې څــوک خپل دوست يا غمخور ئې نۀ وي ـ يوائې ، بې يار و مددګار ـ

**کس** :- (ک+(ت)س) (اس ـ مذ) هغه زمکه (نرمه مځکه) کومه چې د درياب په غـاړه يـا د خـوړ وغېـره پـه غـاړه د غـره پـه لمـن کښـې يـا د دوو غرونـو ترمېنځه وادي کښې وي لکه : کځ کلے کس کورونه

**کس** :- (ک + س) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) مېده ، اوړۀ شوي ـ ګس

چې مئين شـــو د ليلى پـــه تـــورو زلفو
خوار مجنون د ځان د عشق په جام کښې کس کا (خواجه محمد)

**ګس** :- (کُ + س) (ف ، اس ـ مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) د ښـځې پـټ انـدام ، د ښځې د متيازو ځاے ، پنډ ، نېغے (۲) ادنى او حقير بني ادم

لکه : کُس تـه ګـوره چې پـړې غړي (متل)

**ـــــ بازار** :- ( ـــــ با + زا + ر ) (ف تر ، اس ـ مذ) د ډمو بـازار ، د فاحشه ښځو بازار ، چکله ـ

**ـــــ بازاري** :- (ـــــ با + زا + ري) (ف تر ، اس ـــ مو) بدنظمي ، لاقانونيت

**ـــــ بازاري جوړول** :- بـدنظمي جوړول ، لاقانونيت جوړول د قاعدې قانون پابندي نۀ کول ـ په خپل اختيار ، څۀ چې زړۀ غواړي هغه کول

**ـــــ تېزن** :- (ـــــ تې + ز + ن) (پ تر ، صف ، مذ ، مـو ـــــ ه) نامرد ، هېڅکاره ، بزدل ، بې غېرته

**ـــــ لکه** :- (ـــــ ل + ک) (پ تر ، اس ، صف ، مو ، ج ـــ کې) بدچلنه ، بدکاره ،فاحشه ښځه ، د کنځلو په طور استعمالېږي ـ شهوتي ښځه

**پــه ـــــ کښې لاړ** :-(جمله) توجه ورله مه ورکوه ـ ورک دې شي ـ پروا ئې نۀ کوم ـ

**پــه ـــــ کښې هډوکي لټول** :- بې ځايه دخل ورکول ـ بې ځايه اعتراض کول ـ په غيني کښې هډوکي لټول ـ

**له ـــــ تېرېدل / دانګل** :- حيا غـورزول ، بې حيا کېدل ، د خپل شرم پړدې خيال نۀ ساتل ـ بدچلنه کېدل ، فاحشه کېدل ـ

ښځه چې له کُسه تېره شي نو قلندره شي ! (متل)

**کسات** :- (ک+ سا + ت) (اس ـ مذ ، ج ـــــ ونه) بدل ، انتقام ، قصاص

**ـــــ اخېستل / اغېشتل** :- ـ د چانه (څخه) بدل اخېستل ، قصاص اغېشتل

**کساد** :- (ک + سا + د) (ع ، اس ـــ مـذ ، ج ـــــ ونـه) د بـازار سـوړوالے ، د خريدارانو او ګاهکانو کمے ، د مال نۀ خرڅېدنه ـ د نرخونو غورځېدنه ، ترويټه ـ

وخت چې د ځوانۍ وو جيـد مهر مروج وم
اوس مې په پيرۍ کښې رواج نشته بې کساد (حافظ)

**کساد** :- (ک + سا+ د ) (۱) داسـې څيـز پـه بيعـه واخسـتے شـي خـو بيـا پـرې پښېمانه شي ـ (۲) ارزاني (۳) بې رونقي ، بې رواجي ، د بازار مانده کېدل ، د څيزونو نۀ خرڅېدل ـ

**ـــــ بازاري** :- (با + زا + ري) (عف ، تر ، اس ـــــ مو) د بازار مانده کېدنه ، د بازار پرې وتنه ، د سودا نۀ خرڅېدنه ، ارزاني ـ د قيمتونو پرېوتنه ـ د ګاهکانو کمے د خريدارانو کمے يا نيشتيا ـ

**کسافت** :- (ک + سا + ف + ت) (ع ، اس ، مـذ ، ج ـــــ ونه) تتـوالے ، خړوالے ، خيرنوالے ، ګنده والے ـ

**کسـالت** :- (ک + سـا + ل + ت) (ع ، اس ، مـذ ، ج ـــــ ونـه) سسـتي ، د بـدن سستي ، کاهلي ـ کړمنتوب ، غړند توب

**کسب** :- (ک + س / سْ + ب) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) ګټنـــــــــه ، حصلونه ، حاصل کونه پېدا کونه ـ (۲) مجازاً پېشه ، کار ، چاره (چې پرې خپله روزي ګټلې شي) حرفه ، دنده ، هنر

**ـــــ ګر** :- (ـــــ ګ + ر) (عف تر ، اس / صف ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) کسب کوونکے ، کار کونکے ، د کوم هنر يا د فن په ذريعه روزي پېدا کوونکے ـ

**کسبت** :- (ک + س + ب + ت) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) هغه ګوډے يا د څرمنې

جوړ شوي بکس ګوتې چې نائیان په کښې خپل کالي (اوزارونه) ږدي۔ او ترخ ته ئې واچوي۔

**کسبه** :- (ک + س + ب) (و ـــ کسب ګر)

**کسبي** :- (ک + س + بي) (ع تر ، اس ـ مذ / مو) (۱) کسب کوونکے ، کار هنر کوونکے ، چاري کښ ، کسب ګر (۲) په کسب سره حاصل شوے ، په محنت او زيار حاصل شوے ۔(۳) ډمه ، فاحشه ، بازاري ښځه۔

**ـــ خانه** :- (ـــ خا + ن) (ف تر ، اس ، مو ، ج ـ نې) د ډمو بازار ، چکله

**کسپین** :- (ک + س + پي + ئ + ن) (اس مع) بحیره خزر ، د ترخو اوبو د ټولونه لويه بحيره يا جهيل۔ د کسپين بحيره۔

**کست** :- (ک + س + ت) (اس ـ مذ ، ج ـــ ونه) د ,, قصد ،، بدل شکل دے ۔
(و ـــ قصد) (۱) ضد ، عکس ، مخالفت (۲) دښمني ، عناد

د اسمان د عاشقانو سره کست دے
هر زمان ئې په هجران سره غمناک کا (خوشحال)

**کستره** :- (ک + س + ت + ر) (اس ، مو) يو قسم بوټے دے چې وړې وړې خړانګې پاڼې لري او سپين ګلونه کوي۔ د دې بوټي تخم ته هم کستره وائي۔

**کستوره** :- (ک + س + تو + ر) (و ـــ کستوري)

**کستوري** :- (ک + س + تو + ري) (هـ ، اس ـــ مو) يو قسم قيمتي خوشبوئي چې د خاص قسم هوسيو د نوم نه حاصلېږي ۔ دا خاص قسم هوسۍ په تاتار ، ترکستان ، تبت او د همالې د غرونو په زنځيرۍ کښې پيدا کېږي ۔ مشک ، مشک نافه۔

**کستير** :- (ک + س + تي + ر) (اس ـ مذ) (۱) اس ، د حضرت کاکا صاحب عليه رحمة لقب دے ۔ کستير ګل ميا (۲) کستوري

ستا د زلفو هر هر پېچ وته چې ګورم
همګې په رنګ و بوي لکه کستير دي (خوشحال)

**کستيرے** :- (ک + س + تي + رے) (اس ـ مذ ، ج ـــ ري) يو سپين رنګې غرئيز ګل دے ۔ چې ډېر خوشبويه وي ۔ کستير

کستيرے د کوهستان
که مېده کړې ځان په ځان (د صديق طب ، زړه پانګه)

**کسچيچونکے** :- (ک + س + چ + چو + ن + کے) (اس ـ مذ ، ج ـ کي) د اوبو يوه حشره ده ۔ چې چيچل کوي

**کسر** :- (ک + س + ر) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) ماتونه ، دوه ټوټې کونه ۔ (۲) کمے ، نقصان ، ماته (۳) د زېر حرکت (۴) (رياضي) د ,, يو ،، (اکائي) په ګڼو برخو کښې يوه يا زياتې برخې۔

**ـــ اعشاريه** :- (ـــ ا (ع) + شا + ري + ی) (عف تر ، اس ، مو) د يو (عدد) په لسو برابرو برخو کښې يوه يا زياتې برخې لکه د ,, يو ،، چې لس برخې کړے شي او د دې لسو نه پينځۀ واخستے شي ۔ دا په دې ډول ليکلے شي (۵ ء ۱۰) يعني ۱۰ / ۵

**ـــ ابستل / اباسل** :- (۱) کسر يعني کمے پوره کول ۔ نقصان پوره کول۔ (۲) بدل اخستل ، انتقام اخستل۔

**ـــ پاتې کېدل** :- کمے پاتې کېدل ۔ نقص يا عيب پاتې کېدل۔

**ـــ پوره کول** : کمے پوره کول ، نقصان پوره کول ۔ نيمګړتيا پوره کول۔

**ـــ مضاف** :- (ـــ م + ضا + ف) (عف ، تر ، اس) د کسر کسر ۔ هغه کسر چې په کښې د دغې کسر بل کسر هم وي۔ لکه : د ۵/۲، ۳/۴ ، (۵/۲×۳/۴)

**ـــ مفرد** :- (ـــ م + ف + ر + د) (عف ، تر ، اس ـ مذ) هغه کسر چې ورسره صحيح عدد نۀ وي ۔ لکه ۳ / ۴ دې ته ساده کسر هم وائي۔

**ـــ ملتف** :- (ـــ م + ل + ت + ف) (عف تر ، اس ـ مذ) هغه کسر ته وائي د کوم شمار کننده او نسب نما دواړه يا په دواړو کښې يو ، ساده يا مرکب کسر وي ۔ يا کسر مضاف وي۔

**ـــ نفسي** :- (ـــ ن + ف + سي) (عف تر ، اس ، مو) خپل نفس کمونه ، خپل ځان کم ګڼه خاکساري۔ خصوصاً د خپل اصل حالت نه ځان کم ښيَنه۔

**ـــ نۀ پرېښودل** :- (۱) کمے نۀ پرېښودل ، نقص نۀ پرېښودل۔ (۲) پوره پوره کار يا کوښښ وغېره کول۔

**کسر** :- (ک + س + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) د غزل وغېره مقطع چې شاعر په کښې خپل نوم يا تخلص راولي ۔ (۲) تخلص (۳) ځينو لغتونو د ,, مطلع ،، (د غزل وغېره اولنے شعر) معناهم ورکړې ده۔

**کسرت** :- (ک + س + ر + ت) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ورزش، رياضت

**کسره** :- (ک + س + ر) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ رې) زېر (حرکت)

**کسرۍ** :- (ک + س + ر + ی) (اس ، مو) فاحشه ښځه ، بدکاره ښځه ، پلشته بدلمنه۔

**کسرىٰ** :- (ک + س + را) (اس ، مذ ، ج ـ ګان / کاسره) د نوشېروان بادشاه لقب ، چې وروستو بيا د ايران د ساساني بادشاهانو لقب هم وګرځېد ۔ (اصلاً دا لفظ په فارسۍ کښې ,, خسرو ،، دے ۔ په عربۍ کښې تري کسرىٰ جوړ کړے شۀ او د خسرو اصل معنىٰ ,, ملک زياتوونکے ،، دي)

په جهان کښې به ئې پاتې ښۀ بد نوم شي
که زده چارې د کسرىٰ کـه د حجاج کا (خوشحال)

**کسکر** :- (ک + س + ک + ر) (اس ، مذ) د وريژو دانه چې سره د يو ستر پاتې شوې وي۔

**کسکر** :- (ک + س + ک + ر) (اس ، جم) د شولو د ټکولو نه پس چې کومې دانې په شولو کښې پاتې شي۔

**کسکر** :- (ک + س + ک + ر) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) ذرې ذرې ، ټوټې ټوټې (۲) د ډوډۍ هغه برخه چې په تنور کښې پاتې شي ۔ او له تاوه ډېره زياته وچه شي۔ (۳) نرے او بېخي وچ څيز (لکه پاڼه) (۴) تباه او برباد ، نيست و نابود

**کسکر** :- (ک + س + ک + ر) (اس ، مذ) (۱) سوے لوے ، سوځېدلے ، سوخته (۲) مجازاً سخت مئين ، عاشق

**کسکرول** :- (ک + س + ک + ر + ؤ + ل) (مص) (۱) نيست و نابود کول۔ (۲) ريزه ريزه کول۔ ذرې ذرې کول ، ټوټې ټوټې کول۔ (۳) بېخي وچ او نرے (لکه پاڼه) (۴) تباه کول ، بربادول ، نيست نابود کول۔

څو همه واره کسکر و بله نۀ کړې
خوا به ستا نشي مړه په يو څو خانه (خوشحال)

**کسکرول** :- (ک + س + ک + ر + ؤ + ل) (مص) (۱) سوخته کول ، سوځول (۲) ډېر تکليف ور رسول ، سخت په عذابول (۳) مجازاً مئينول ، عاشق کول۔

**کسکرونکے** :- (ک + س + ک + ر + وو + ن + کے) (اس ، فا ، مذ ، ج ـــ کي) (۱) ټوټې ټوټې يا ذرې ذرې کوونکے ، (۲) د پاڼې په شان وچوونکے ۔ (۳) تباه و برباد کوونکے ۔ ډېر زيات تکليف رسوونکے ۔

**کسکروونکے** :- (ک + س + ک + ر + وو + ن + کے) (اس ، فا مذ ، ج ـــ کي) سوځوونکے ، سوخته کوونکے ، سوے لوے کوونکے ۔

**کسکرونه** :- (ک + س + ک + ر + ؤ + نَ) (حمص) سوځونه ، سوخته کونه ، سوے لوے کونه۔

**کسکربدل** :- (ک +س +ک+ ري + د + ل) (مص) (۱) نيست و نابود کېدل
(۲) تباه و برباد کېدل ـ سوے سکور کېدل ـ (۳) ذرې ذرې کېدل ـ ټوټې ټوټې کېدل
(۴) ډېر زيات تکليف او دوک رسېدل ـ (۵) (د پاپړ په شان) وچېدل ـ
**کسل** :- (ک +س +ل) يا (ک + س + ل) (مص) کتل ، نظر کول ، په نظر کښې کول
**کسل** :- (ک +س + ل) (ع ـ س ، مذ) (۱) سستي ، کاهلي ، کرمن ، غړند شارې دارې (۲) د طبيعت ناساز والے ، ناروغتيا هډوکي ماتېدنه ـ
**کسلے** :- (ک +س +لے) (اس ، مف ، مذ ـــــ لي) کتلے ، ليدلے
**کسنبه** :- (ک +س + م + بَ) (اس ، مو ، ج ـــــ بې) کسنبه ، عصغر ، يو قسم گل دے چې سور رنګ ترې جوړولے شي (ار : کُسم يا کسنب)
**کسنه** :- (ک +س + نَ) (حمص) کتنه ، ليدنه
**کسو** :- (ک +سو) (صف ، مذ) کنځل دي ـ د نامرد ، کم همته سړي دپاره استعمالېږي ـ د ښځې په شان ـ
**کسوت** :- (ک +س + و + ت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) جامه ، لباس ، پوشاک ، کالے ، د اغوستنې څيز ـ
بـــل هغه سړے احمق بللے بـــويـه
چې لوئي کا په لباس په کستونونه (خوشحال)
**کسور** :- (ک +س + ر) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) انتقام ، قصاص
(۲) تلافي ، بدله ، بدل
**کسور** :- (ک +س + ر) (ع ، اس ـ ج) د ,, کسر ،، جمع
**کسورے** :- (ک +سو + ر + ے) (صف) عاجز ، بې چاره ، درمانده
**کسوړه** :- (ک +سو + ړَ) (و ـــــ کځوړه)
**کسوف** :- (ک +سو + ف) (ع ، اس ، مذ) د نمر (نور) تندر نيول ـ
**کسه** :- (ک +سَ) (فعل) د ,, کسل/کتل ،، مصدر نه د امر استمراري صيغه گوره ـ ته گوره ـ وگوره ! وکسه
**کسه** :- (ک +سَ) د ,, کس ،، تانيث دے ـ لکه :- هلته زۀ يو کسه وم ـ
**کسه** :- (ک +سَ) د ,, کس ،، يو قسم جمع ده ـ ځينو مغيره تورو سره راځي ـ لکه :- لس کسه يا په سل کسه بللے په اخور کښې څملولے ! (متل)
**کسه** :- (ک +سَ) د ,, قصه ،، بدل شکل دے ـ (و ـــــ قصه)
**کسي** :- (ک +سي) (اس ، ج) (۱) د سترګو تور (۲) مجازاً سترګوته هم وائي ـ
څۀ کرم زۀ بې ياره کسي
چې بې ياره کسي کسي (علي خان)
**ـــــ وتل** :- مجازاً ډېر زيات په غور سره کتل ـ
لايقت د وصل نۀ وينم په ځان کښې
په کاتـۀ کاتـۀ مې کسي وواتـۀ (حميد)
**د سترګو ـــــ خوړل** :- مجازاً مړ کېدل ، سترګې خاورې کېدل ـ
عموماً د ښېرې په طور وئيلے شي چې د سترګو کسي وخورې ـ
**کسي** :- (ک +سي) (فعل) د ,, د سترګو کسي ، په سترګو په تور کښې هغه درې چوکې چې اصل د رڼا مظهر دي ،، مصدر نه د فعل حال صيغه گوري کتل کوي ـ
څۀ کرم زۀ بې ياره کسي
چې بې ياره کسي کسي (علي خان)
**کسيا** :- (ک +س + يا) (اس ـ مذ) (۱) دوړه ، غبار ، گرد (۲) ذره
(۳) مېده ، اوړۀ شوے
**ـــــ کول** :- مېده کول ـ ډېر زيات مېده کول ـ سفوف جوړول ـ پوډر جوړول
**کسيره** :- (ک +سي + ره) د ,, کاسيره ،، بدل شکل دے ـ يوه وړه پخواني سکه ـ چې د پخواني پيسې څلورمه برخه ده ـ د مړي ـ چـــې اوبۀ پـــه کاسيره وو نو چې کاسيره نه وه نو گران وو ، او چې اوس په سل روپۍ شۀ ، نو روپۍ دے
نو ارزان شه (متل)
**کسيره** :- (ک +سي +رَ) د ,, کاسيره ،، بدل شکل دے ـ فاحشـــه ، بدچلنه ښځه ، بې شرمه ، بې حيا (ښځه)
**ـــــ توب** :- (ـــــ تو + ب) بې حيائي ، بې شرمي ، ډمتوب ، فحش خبرې يا اشارې کونه ـ
**کسيرې** :- (ک +سي + رې) (اس ، مو ، ج) (۱) د ,, کسيره ،، جمع ده
(۲) د ,, کسيره ،، اضافي او بحروري وغېره (متغيره) شکل ـ
**کسيز** :- (ک +سي + ز) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) د ,, کس ،، سره متعلق ، په معنٰی د يو فرد يا تن ـ لکه :- لس کسيز کميسيون
**کسۍ** :- (ک +س + ی) (اس ، مو) (۱) د غرونو د درې زمکه ، د نالې زمکه ، د چور زمکه ـ (۲) دريابي زمکې (و ـــــ کځ)
**گسۍ** :- (ک +س + ی) (صف ، مو) کنځل دي ـ فاحشه ، قحبه ، بدچلنه بدکاره ښځه ـ
**کش** :- (ک+(ت) +ش) (اس ـ مذ) يو قسم ټوکړے چې ټوپۍ ترې جوړولے شي
**کش** :- (ک+(ت)ش) (اس ـ مذ) ـ ج ـ ونه) هغه ټوټه (د ټوکې) چې د زنانهٔ د قميص دګرېوان شاته گنډلے شي ـ
**کش** :- (ک+(ت) ش) (اس ـ مذ ، ج ـ ونه) د کوټې چت ـ په کورکښې د تنه چت ـ
**کش** :- (ک +ش) (اس ، صوت) (۱) معمولي شان اواز ، ښکالو
(۲) د کوم پوست ، نرم څيز د راښکلو اواز ـ
**ـــــ پـش** :- (ـــــ پ + ش) (اس ، مذ) (۱) تذبذب ، دو جالتوب ، مخمصه (۲) په کارکښې سستي يا بې زړۀ توب
**ـــــ پش کول** :- (۱) حرکت کول ـ په حرکت سره د پښو وغېره اواز پيدا کول ـ
(۲) تذبذب کول ـ په دوه ؤ کښې حېرانېدل ـ (۳) په کار کښې سستي کول ـ په کار کښې زړۀ نۀ لګول ـ
**ـــــ کول** :- (۱) راښکل (په لاس) (۲) راښکل (په ساه سره)
لکه : يو دوه دوده ئې (د چيلم) کش کړل ـ
**کش** :- (ک +ش) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) د ,, کشيدن ،، مصدر اسم دے ـ راښکل ، راښکنه (۲) د چيلم يا د سګرېټ وغېره لوګے په دننه راښکنه ـ لکه : سګرېټ له ئې کش ورکړ ـ
**کش** :- (ک +ش) (ف ، لاحقه) د فارسي لاحقه ده ـ نورو الفاظو سره راځي ـ او د راښکلو معنٰي ورکوي ـ لکه :- جاروکش (په پښتو کښې اکثره ,, ښ ،، سره ,,کښ ،، ليکلے کېږي)
**ـــــ مکش** :- (ـــــ م + ک + ش) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) مشت و گرېوان ، جګړه ، شخړه
په دا کش مکش کښې تېر شۀ
پـــه مـــا عـــمـر رائېگان (خوشحال)
(۲) (د خيالاتو وغېره) راښکنه را راښکنه ـ تذبذب حالت ، څکول را څکول دو جاله ، سوچ فکر ـ
**بار ـــــ** :- (با + ر ـــــ) (ف تر ، صف مذ ، مو ـــ ه) بار وړونکے ، باري ، بارکش
**جارو ـــــ** (جا + رو ـــــ)
**جاروب ـــــ** (جا + رو + ب ـــــ) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان)
جارو راښکونکے ، جارو وهونکے ، صفائي کوونکے ـ
**دود ـــــ** :- (دو + د ـــــ) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) دود کښ ، لوګے ايستونکے ـ په چت کښې هغه وړوکے شان سورے چې د نغري لوګے ترې

وروزي ـ په کارخانو کښې هغه لوړه نرۍ مناره شان چې په مېنځ کښې خالي وي چې د کارخانې لوګې ترې ووزي ـ

**محنت** :- (م + ح + ن + ت)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان)
محنت کوونکې ، مزدور ، مزدورکار ، خواري کښ

**فاقه** :- (فا + قَ)(ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان)
(۱) فاقه کوونکې ، لوږه تېروونکې ، نهره (نهرې) تېروونکې
(۲) مجازاً خوار غريب ، بې ماله

**کشا** :- (ک + شا)(۱) (و ـــ کش مکش)
(۲) تکليف ، زحمت ، فکر ، تشويش

**ګش** :- (کُ+ش)(ف ـ لاحقه) د فارسي لاحقه ده ـ نورو الفاظو سره راځي ، د وژلو (وجلو) معنی ورکوي ـ

**ګشا** :- (کُ+شا)(ف ـ لاحقه) د فارسي لاحقه ده ـ نورو الفاظو سره راځي ـ او د پرانستلو ، ويړولو معنې ورکوي ـ

**کشادګي** :- (کُ+شا + د + ګي) (ف ، اس ، مـو) پراخـوالې ، ويـړوالې ، وسعت ، ارت والې ـ

**کشاده** :- (ک + شا + د) (ف ، صف) پراخ ، فراخ ، وسيع ، ويړ ، خور وور ارت ، ارت بېرت ـ

**کشاف** :- (ک + ش + شا + ف)(ع ، صف ، مذ ، مو ـ ه) د مبالغې صيغه ده (۱) ډېر پرانستونکې ، ښځې ښکاره کوونکې ، لڅوونکې کشف کوونکې ، دريافت کوونکې (۲) (مع) د علامه زنخشري د مشهور تفسير نوم (۳) د دغې نوم يو تفسير په پښتو کښې هم شته ـ چې حافظ محمد ادريس ليکلې دې ـ

**کشافي** :- (ک + ش+ شا+في) (عف تر ، اس ـ مو) کشف کونه ، ښکاره کونه ، څرګندونه

**کشال** :- (ک + شا + ل) (ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) اوږد ، زوړند ، ځوړند ، ځړېدلې ، راکښلې

کـه يـو دم له جدائي وبله وشي
زړۀ ئې بيا وي و وصال وته کشال (خوشحال)

**کشاله** :- (ک + شا + لَ) (فپ ، تر ، صف ، مو ، ج ـ لې) د ,, کشال ،، تانيث دې ـ

**کشاله** :- (ک + شا + لَ) (اس ، مو ، ج ـــ لې)(۱) جنجال ، شخړه ، پيچيده مسئله ، تنازعه ، هغه معامله چې فيصله کول غواړي ـ
(۲) پيچيدګي ، ننبته ، اريکه

**ـــ پيښېدل** :-(۱) جنجال پيښېدل ، تنازعه (ور) دوڅارېدل ـ حل طلبه مسئله پيښېدل (۲) په کار کښې پيچيدګي پيدا کېدل ـ په کار کښې خنډ راتلل ـ

**ـــ هوارول** :- پيچيده مسئله حل کول ـ جنجال ختمول ـ تنازعه فيصله کول ـ

**کشالي** :- (ک + شا+ لي)(۱) د ,, کشاله ،، جمع ده (۲) د ,, کشاله ،، اضافي او مجروري وغېره (متغيره) شکل ـ

**کشان** :- (ک + شا+ ن) (ف ، تف) راښکنه ، راخکونې

**کشان** :- (ک + شا + ن) (ف ، صف) په راښکلو (راښکلو)

چې د ښهر زاهدان شېخان پيران دي
زړۀ د هـر يـو کشـان وړي په زلفين (خوشحال)

**کشانده** :-(ک + شا ن + دَ)(ف ، صف) (بل) راښکلې کېدونکې ، خواهشمند لکه :- زړۀ مې پسې کشانده وۀ ـ

**کشاورز** :- (ک + شا+ و + ر + ژ) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ان)
کر کرونده کوونکې ، زميندار ، دهقان ، کخې ، بزګر ، يوبه ، کريځ

**کشـائش** :- (ک + شـا + ئ + ش)(ف ، صـف) پراخـي ، فراخـي ، وسـعت ، کشادګي د روزګار يا د روزۍ فراخي ـ

**کشپ** :-(ک + ش+پ)(اس ، مذ ، ج ـ ان) شمشتې ، شکر تاتې ، کاتلې

**کشت** :- (ک + ش + ت)(اس ، مـذ ، ج ـــ ان) د هلکـانو پـه لوبـو کښـې د مشر (مير) ملګرې ـ د لوبې د ,, مير ،، (مشر) ماتحت ملګرې ـ

**ګشت** :- (کُ + ش + ت)(ف ، اس) (د کشتن مصدر ماضي مطلق دې) په پښتو کښې نورو لفظونو سره راځي

**ـــ خون** :- (ـــ (تو) + خو + ن)(ف تر ، اس ، مذ) د دواړو لفظونو معنې تقريباً يو شان دي ـ دوېم لفظ د تاکيد دپاره راځي ـ ډېر زيات قتلونه او وينې تويونه ـ

**کشت** :- (ک + ش + ت) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د شطرنج په لوبه کښې يوه وهونکې مهره ـ د مخالف بادشاه ته مخامخ کښېښودل ـ په دغه موقع د ,,کشت ،، په لفظ مخالف له خبردارې ورکوي چې بادشاه دې بچ کړه ـ که مخالف خپل بادشاه بچ نۀ کړې شي نو ,,مات ،، شي ـ داسې کشت ته ,,کشت مات ،، وائي ـ

**ـــ ورکول** :-(۱) د شطرنج د يو لوبغاړي خپله مهره بادشاه ته مخامخ کښېښودل ـ چې بادشاه پرې وهلې شي ـ (چې بادشاه ووهلې شي نو لوبه په ښېلات ختمه شي) ځکه نو د مخالف دپاره د خپل بادشاه بچ کول ضروري وګرځي ـ

**کشت** :- (ک + ش + ت)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه)د ,, قسط ،، بدل شکل دې ـ د قرض وغېره د کل رقم يوه خاص مقرره برخه چې په مقرره وخت ادا کولې شي

**کشتره** :- (ک + ش + ت + رَ)(اس ، مو ، ج ـــ رې) د يو ګل نوم دې ـ چې سپين يا زيړ وي ـ کستره ـ

**کشترۍ** :- (ک + ش + ت + ر + ی) (اس ـ مو) شکرۍ ، وړه تـوکرۍ چـې د ميزرې يا لوخې نه جوړه شوې وي ـ

**کشتن** :- (ک + ش + ت + ن)(ف ـ فع) وژل ، قتلول

دا خوني سترګې چې تۀ لرې دلبرې
پـه کشتن به خلقې کاندې ډېرې (خوشحال)

**ګشته** :- (ک + ش + تَ)(اس ، مو ، ج ـــ تې) اشاړې ، مشهوره مېوه

**کشته** :- (ک + ش + ت)(ف ، اس مف)(۱) وژلې شوې ، مقتول

په بدبويۍ دې د کشتګانو مزکه خسا شوه
چې ريز ريز شوه پـه ډوډه کښې په حسام (خوشحال)

(۲) وژلې شوې فلز (دهات لکه سرۀ زر ، سپين زر ، تانبه وغېره) چې په خاص طريقه په اور وژلې شوې وي چې نرې بوډر ترې جوړ شي ـ په داروګانو کښې استعمالېږي ـ (۳) مجـازاً : عاشـق ، مئـين (۴) شهيد

عاشقان مې کشتګان د معشوقې دي
کشتګانـو څـخـه نشته سوال جواب (خوشحال)

**کشتي** :- (ک + ش + تي)(اس ـ مو) پرزول ، پهلواني ، کېډې

**کشتۍ** :- (ک + ش + ت + ی)(اس ، مو) وړه بېړۍ ، سفينه (اصلاً د کاف زور (فتح) سره دې ـ خو په پښتو کښې زېر سره وائي)
(په فارسۍ کښې ,, کشتي ،، د وړې کشتۍ نه واخلې تر لوې جهازه پورې ټولو ته ,, کشتي ،، وائي ـ خو په پښتو کښې وړې بېړۍ ته وائي)

**ـــ نوح** :- (ـــ نو + ح)(اس ـ مع) هغه خاص بېړۍ چې نوح عليه السلام د خدائې پاک په حکم جوړه کړې وه او چې طوفان راغې نو

حضرت نوح علیه السلام او ځینې نور مؤمن کسان او د مرغو ځناورو جوړې په کښې د طوفان نه محفوظ پاتې شول.

**بادباني ـــــ** (با + د + با + ني ـــــ) (فپ تر ، اس.مو ) هغه کشتۍ چې د بادبان (بادوان) په زور چلېږي.

**کشـر** :- (ک + ش + ر ) (اس ، مـذ ، ج ـــــ ان) (۱) پـه عمـر کښـې د بـل نـه وړوکے (۲) وړوکے ، د کچ عمر ، ورکوټے.

**کشروټے** :- (ک + ش + رو + ټے) (اس ، مـذ ، ج ـــــ ټـي) د ,, کشـر ،، تصغیر دے.کشر ، ډېر کشر

**کشره** :- (ک + ش + رَ) (اس.مو ، ج ـــــ رې / رانې) د ,, کشر ،، تانیث دے.وړه ، وړوکې

لـري مشر مشره بـرخه ، کشر کشره

برابر نۀ دے چرګ بانګ له ملا بانګ (حمید)

**کشرۍ** :- (ک + ش + ر + ی) د ,, کشرې ،، تصغیر دے.

**کشرۍ** :-(ک + ش +ر+ ی) د ,,کشرې ،، تانیث دے.لکه :- کشرۍ خور

**کشـرۍ** :- (ک + ش + ر + ی) (اس ، مـو) وړوکې ټـوکرۍ چې د میـزري یـا د لوخې نه جوړه شوې وي.کشترۍ ، شکرۍ.

**کشـرۍ** :-(ک + ش + ر + ی) (اس ، مـو) یـو وړه ښـکلي اواز والـه مرغـۍ ده . کترۍ

د قمري اواز مې هم دے اورېدلے

ولې ډېـره تـرې بهتره کشرۍ ده (هجري)

**کشـرے** :- (ک + ش + رے) (اس ، مـذ ، ج ـــــ ري) (۱) لویـه ټـوکرۍ ، هغـه لویه

ټوکرۍ چې د میـزري یـا د لـوخې نـه جـوړه شـوې وي .شکرے (۲) یـو پیمانه (د غلې وغېره)

**کشرے** :- (ک + ش + رے) (اس ، مذ ، ج ـــــ ري) لـوے خـاورین لوښـے ، چې خولۀ ئې ارته وي.کونډا ، بورځنګ

**کشرے** :- (ک + ش + رے) (صف ، مذ ، ج ـــــ ري) هغه چې پـه عمر کښـې د بل نه کم وي لکه :- کشرے ورور.

**کشړوپ** :-(ک + ش +ړو + پ) (صف ، مذ ،مو ـــــ ه) کړشپ ، هغـه چې غاښونه ئې پریوتي وي.کړشوپ.چې خولۀ ئې د غاښونو نه خالي وي.

**کشـش** :- (ک + ش / شـې + ش) (ف ، اس ، مـذ ، ج ـــــ ونـه) (۱) د راښـکلو قـوت ، راښـکنه (۲) هغـه قوت چې د بـل بنـي ادم زړۀ ځان تـه راکاږي . حسـن ، ښائسـت ، نـاز ، انـداز ، ادا ، کـبځ ، غـنج وغېـره دا ټـول داسـې کشش لري.

**ـــــ اتصال** :- (ـــــ ا+ ت + ت + صا + ل) (عف تر ، اس ، مذ)

(طبعیات) د اجسامو د هغې قـوت نـوم دے کـوم چې د یـو څیـز ذرې پـه خپله کښې یو ځاے او پېوستې لري.

**ـــــ انابیب شعري** :-(ـــــ ا+ نا + بي + ب + ش + ع + ري) (عف تر ، اس ، مذ)

هغـه قـوت د کـوم لـه کبلـه چې اوبـۀ د خپلـې عـامې سطحې نـه پـه بـره ورخیژي.لکه :- د باتۍ تېل

**ـــــ ثقل** :- (ـــــ ث + ق + ل) (عف ، تر ، اس ، مذ) (طبعیـــــات) د زمکې هغه قوت کوم چې څیزونه خپل ځان ته راکاږي .(هم د دې کشش له کبله څیز که بره وغورځولے شي نو هم ښکته زمکې لـه راځي .او هم د دې کشش له کبله څیزونه وزن لري)

**کشف** :- (ک + ش + ف) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) پرانستنه ، څرګندونه ، ښکاره کونه ، بربنډونه ، نخونه (۲) وضاحت ، تفسیر ، تصریح (۳) د ,, صوفیانو ،، په اصطلاح کښې هغه درجه چې په کښې په صوفي باندې

د غیب ټول اسرار څرګند شي .(د غیبو علم صرف خداے پاک سره دے)

یو تر بله تیر کاندي په کشف کرامت کښې

واړه ســلســلــه ده دُر و لال د چشتیانو (خواجه محمدبنګش)

(۴) انکشاف ، پټ او نامعلوم څیز معلومونه ، دریافت

**ـــــ الحال** :- (ـــــ ف + ل) حا + ل) (ع ، تر ، اس ، مذ) د حال کشف ، د حال معلومونه.

**ـــــ قبور** :- (ـــــ ق + بو + ر) (عف ، تر ، اس ، مذ) د صوفیانو هغه مرتبه چې په صوفي کښې داسې قـوت پیـدا شي چې هغـه پـه قبرونـو کښـې د مړو حال معلوموله شي.(دا محض د ,, صوفیانو ،، عقیده ده)

**ـــــ کول** :- انکشاف کول ، پټ څیز معلومول، دریافت کول.

**ـــــ کېدل** :- (۱) پټ راز یا پټه خبره په روحاني طریقه معلومېدل .(صوفیانه) (۲) انکشاف کېدل.نامعلوم څیز یا خبره وغېره معلومېدل.دریافت کېدل

**کشفېدل** :- (ک + ش + فې + د + ل) (مص) (۱) کشف کېدل ، څرګند بدل ښکاره کېدل .(۲) پټه خبره یا راز وغېره ښکاره کېدل یا معلومېدل .(۳) په سائنسي طریقه څۀ نوے څیز دریافت کېدل.

**کشک** :- (ک + ش + ک) (اس ، مذ ، جم) قـروت ، کـروت ، بګـوړه (یـو قسم اوچ پنیر)

**کشک** :- (ک / ک + ش + ک) (ت ، اس ، مذ) څوکۍ ، څوکیداري

**کشکاب** :- (ک + ش + کا + ب) (پ تر ، اس ، جم) ورتې کړې اوربشې مېده کړې او لیتۍ شان ترې جوړه کړې.د اوربشو لیټۍ.

د نبـاتو حـلوا مـــه خوره چې منت ورسره مل وي

خپل کشکاب د خپل محنت خوره په سر راوړه پشتاره خوشحال

**کشکره** :- (ک + ش + ک + ر) (اس ، مو ، ج ـــ رې) مشهوره مرغۍ ، کېږکه ، کړغیچکه

**کشکره** :-(ک /ک +ش +ک + رَ)(اس ،مو )کټمل ، کیک (وردګ ) مونګې

**کشکوره** :- (ک + ش + کو + رَ)(اس ، مو ، ج ـــ رې)یوه حشره ده چې سپینه او توره (برګه) وي.او سخت چیچل کوي.

**کشکول** :- (ک + ش + کو + ل) (و ـــ کچکول)

**کشکے** :- (ک + ش + کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) د یوې مرغۍ نوم دے

**کشکې** :- (ک + ش + کے) د افسوس کلمه ، کاش که ،

چې پـــه ډېر ارمان محبوبه څنې درومي

کشکې شپه د خوار عاشق وے بې سحره (خوشحال)

**کشمالو** :- (ک + ش + ما + لو) (اس ، مذ ، ج ـــ ګان / ان)مشهور خوشبویه بوټے دے چې پاڼې ئې هم خوشبویه وي.زنانه ئې اکثره د کوټو په چتو کړي.کشمالے ، ریحان ، نازبو.

کـه یو ځلې توري زلفې کړې پرېشانې

خاکستر به په چمن کښې کشمالو کړې (رحمان بابا)

**کشماله** :-(ک + ش + ما + لَ)(اس ، مو ،ج ـــ لې)(۱) و ـ کشمالو (۲) د زنانه ؤ په نومونو کښې راځي.

**کشمالے** :- (ک + ش + ما + لے)(اس ، مذ) (و ـــ کشمالو)

**کشمش** :- (ک + ش + م + ش)(ف ، اس ، جم) د انګورو (کورو) یو قسم چې اوچ کړے شي.وځکې.مېوه ورته هم وئیلے شي.

**کشـمکش** :- (ک + ش + م + ک + ش) (و ـــ د ,, کـش ،، تـر لانـدې) حېـران ، حېرانېدل

**پهـــــ کښې پرېوتل** :-په دوو کښې حېرانېدل.په مخمسه کښې پرېوتل

**کشمیر** :- (ک + ش + مي + ر )(اس ، مع )مشهور ملک ، چې اوس نیم پاکستان سره دے او ,, ازاد کشمیر ،، نومیږي او نیم د هندوانو په قبضه کښې دے چې ,,مقبوضه کشمیر ،، نومیږي ـ اکثریت په کښې د مسلمانانو دے ـ په دنیا کښې د ټولو نه په ښکلو ملکونو کښې حساب دے ـ ځکه ,, کشمیر جنت نظیر ،، بللے شي ـ ښیاګانو قبضه کړے دے ـ خو د مسلمانانو دومره زور او همت نشته چې خپل ملک د ښیاګانو نه بېرته واخلي ـ د دارالحکومت ئې سري نګر دے ـ د ازاد کشمیر دارالحکومت مظفر اباد دے ـ

,, په هر چا خپل وطن کشمیر دے ،، (متل)

**کشمیره** :- (ک + ش + مي + رَ )(اس ، مو ، ج ـــــ رې) یو قسم ورینه کپړه چې پخوا به په کشمیر کښې ډېره ښکلې جوړېده ـ

**کشمیرئ** :- (ک + ش + مي + ر + ئ )(اس ، مو ، ج ـــــ ئ/ انې) د کشمیر اوسېدونکې ښځه ـ د کشمیریانو د نسل ښځه (چې عموماً ډېرې ښائسته وي)

**کشمیرے** :- (ک + ش + مي + رے )(اس ، مذ ، ج ـــــ ان) د کشمیر د ملک اوسېدونکے ـ د کشمیریانو د نسل یو فرد ـ

**کشمیرے** :- (ک + ش + مي + رے )(اس ، مذ ) د یو قسم ګل نوم ـ

**کشـــنده** :- (ک + ش +ن + د )(ف ، اس ، فـا ، ج ـــــ ګـان )(۱) وژونکے وجژونکے ، قاتل ، مړ کوونکے ـ(۲) قاتل ، خوني ـ

**کشـــنک** :- (ک + ش +ن + ک )(اس ، مـذ ، ج ـــــ ان) (بـل ) د ,, کشـتے ،، تصغیر ) وړوکے ، هلک ـ

**کشنیز** :-(ک + ش +ني + ز )(ف ، اس ، جم ) د هنیا ـ د مسالې یو مشهور جُز ـ

**کشو** :- (ک + شو )(اس ، جم )یو قسم مشنګ (دال) دي چې سره د پلو په اوبو کښې یشولے شي ـ

**کشو** :- (ک /کې + شو )(اس ، مذ ـــ ج ـــــ ګان )شمشتي ، کیشپ ، کاتلے ، شکرتاتے ، کښو

علي خان چې دې د غم له پلکه نه مري
زړۀ ئې سخت دے له فولادو او ترکشو (علي خان)

**کشـور** :- (ک + شـو + ر )(اس ، مـذ ، ج ـــــ ان)(۱) یـو مرغـئ ده چې میږي خوري ـ میږي خور ، میږتون خور (۲) یو قسم پشم دار چینجے ـ

**کشور** :- (ک + ش + و + ر )(ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه)(۱) ملک ، علاقه ، سیمه ، لته ـ

چې کـشــور د افـغـانـانـو معطر کړي
د هر بېت مصرع مې زلفې د خوبان کړي (رحمان بابا)

(۲) د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي (د زنانه ؤ په نوم کښې د دې لفظ تانیثي شکل ,, کشوره ،، راځي ) ـ

**کشول** :- (ک + ش + و +ل )(مص )(۱) راښکل ، په راښکلو سره اوږدول ـ (۲) د کش اواز سره راښـکل ، کش ورکـول ـ(۳) پـه راښـکلو راښـکلو بوتلـل ـ(۴) ښـویول ، خویـول ، وربښـکته کـول ـ تـول ورکـول ـ لـکـه :- جېب ته کشول ـ

**کشونده** :- (ک + ش + ن + دَ )(و ـــــ کُشنده )

**کشونه** :- (ک + ش + و + ن )(حمص )(۱) راښکنه ، په راښکلو سره اوږدونه ـ (۲) په راښکلو ځان سره وړنه (۳) په راښکلو ځان سره بوتلنه (۴) غلے شان ښویونه ـ

**کشوونکے** :-(ک + ش + وو + ن +کے )(اس ،فا ،مذ ،ج ـــ کي )(۱) راښکونکے په راښکلو سره اوږدوونکے (۲) په راښکلو ځان سره وړونکے یا بوتلونکے (۳) غلے شان وړونکے (۴) غلے شان ښویه وونکے ـ

**کشه** :- (ک + شَ )(اس ، مو ، ج ـــــ کشې ) د یوې جوړه کړې کرښه ، کیله ، کرک ـ

**کشه** :- (ک + ش )(اس ، صوت ) د مرغیو د الوزولو اواز ، کشې ، کش کش ـ

**کشې** :- (ک + ش + ئ )(اس ، مو ) وړه کدالئ ، وړه ګینتړئ ـ

**کشې** :- (ک + ش + ئ )(اس ، مو ) د وسپنې ټکړه ـ

**کشیده** :- (ک + شي + دَ )(ف ، صف ، مو ، ج ـــــ دې )(۱)راښکلے ، ناموافق ، مکدر لـکـه :- کشـیده تعلقات(۲) برداشت کړے ، زغملے(۳) پـه کپړه باندې په ستن او تار جوړ شوي ګلونه ـ

کشیده به د روزګار رنګا رنګ ځۀ کړم
پـه نظر کښې چې نۀ راځي انځور مې (سعید خټک )

**ـــــ جوړول** :-په کپړه باندې ستن او تار سره ګلونه جوړول ـ

اصالت هنر چې دواړه سره یو وي
لـکـه ښــه کشیده جوړه په انځور (خوشحال)

**ـــــ خاطر** :- (ـــــ خا + ط + ر )(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه ) خفه ، متنفره ، بده خوائي ـ

**ـــــ کاري** :- (ـــــ کا + ري ) (ف تر ، اس ، مو )په خاص قسم کپړه باندې په ستن تار ګلونه جوړونه ـ

**کشیش**:- (ک + شي + ش )(اس ، مذ ، ج ـــــ ان)د عیسائیانو مذهبي پېشوا ـ پادري قسیس ـ

**کشیک** :- (ک + شي + ک )(اس ، مذ ، ج ـــــ ان)کشک چي ، د وربشو یا د فصل څوکیدار ، کشے ـ

**کشے** :- (ک + شے )(اس ، مذ ) د مور او پلار ایکي یو زوے ـ

**کشے** :- (ک + شے )(اس ، مذ ، ج ـــ شي ) د اوسپنې یا د فولادو ټوټه

علي خان چې دې د غم له پلکه نۀ مري
زړۀ ئې سخت دے د پـولادو او تـر کشو (علي خان)

**کشے** :- (ک + شے )(اس ، مذ ، ج ـــ ي )د ورشو یا د فصل څوکیدار ـ

**کښ** :- (ک + خ /ش )(اس صوت ) دکوم څیز د حرکت سپک شان اواز ، کش ـ

**کښ** :- (ک + خ /ش ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) (۱) د ګډ د خارښت یو مرض (۲) ډېره تنګه لار (۳) د قدم ډېر تت نقش

**کښ** :- (ک + خ /ش )(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) ست ، بلنه ، سلا

دے دې نۀ خوري لړي باک
د نـاکام د کـښ خـوراک (شرعت الاسلام)

**کښ** :- (ک + خ /ش ) (و ـــ کـش )(د پښتو یـا د فارسي ځینې الفاظ چې صحیح تلفظ ئې ,, کش ،، دے او هېڅوک ئې ,,کخ ،، یا ,,کښ ،، تلفظ نۀ کوي ـ ,, ښ ،، سره لیکل درست نۀ دي)

**کښ** :- (ک + خ /ش )(اس ، مـذ ) راښـکنه ، راښـکون ، راښـکلے کېدنـه پـه راښکلو اوږدېدنه ـ

**کښانده** :- (ک + خا /شا + ن + د ) (صف مو ، ج ـــــ دے ) مشوش ، پرېشان ، د تشویش او فکر نه ډک ـ

**کښائل** :- (ک + خا /شا + ئ + ل )(مص ) روژه (روجه ) ماتول ، افطار کول ـ که د کم عید میاشت یو کس ووینې روژه دې نۀ کښایي ـ (خېرالبیان )

**کښت**:- (ک + خ /ش + ت )(فـپ ، تـر ، اس ، مـذ ، ج ـــ ونـه )( ۱) کـرلے شـوے پټے ، فصـل والـه پټے (۲) کـر کرونـده ، زراعـت ( ددې لفظ تلفظ ,, کخت ،، نۀ کېږي ځکه ,, ښ ،، سره ئې لیکـل درست نۀ دي د بل لغت نه نقل کړے شۀ)

**کښت** :- (ک + خ /ش + ت )(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د غـر کـړلېچ ، د غـر کوږوالے ، د غر پېچ و خم ـ

**کښتل** :- (ک + خ /ش + ت + ل ) (مص ) ننه یستل ، ننه باسل

حضرت رسول چې امت د دین په کوت ورکنبتلے ، له شېطانه ئې ساتلے ۔
(مخزن)

**کنبته** :- (ک + خ /ش + تَ) (اس ، مو ، ج ــــ تې) (۱) زرد الو ، مندته (۲) وچ زرد الو ، وچه کړې منده ته ۔

**کنبتي** :- (ک + خ /ش + تي) یا (خ + ک + تي) (اس ، ظ) شکسته طرف ، خکته طرف ، ژوره ، جوره لکه :- ځان کنبتي ته غورزول ۔

(د دې لفظ "ښ" ، سره لیک درست نهٔ دے ۔ ځکه چې "کختي" ، ، ښوک نهٔ وائي ۔ د بل لغت نه ولیکلے شهٔ)

**کنبتي** :- (ک + خ /ش + تي) یا : (خ + ک + تي) (و ــــ کنبتیز)

**کنبتیز** :- (ک + خ /ش + تي + ز) یا (خ + ک + تي + ز (اس ، ظ)
شکسته طرف سره تعلق لرونکے ۔ خکته طرف سره تعلق لرونکے ۔ خکته ، شکسته طرف ته منسوب ، کنبتي ۔ لکه :- کنبتیزه زمکه ،
(د تلفظ په لحاظ سره دا لفظ "ښ" ، سره لیکل درست نهٔ دي ۔ شکتیز یا خکتیز لیکل پکار دي ۔ ځکه چې "کختیز" ، ، ښوک نه وائي ۔ خو دا لیک ئې عام شوے دے ۔)

**کنبکر** :- (ک + خ /ش + ک + ر) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) بېخي وچ ، کسکر

**کنبکرکی** :- (ک + خ /ش + ک + ر+ک + ی) (و ــــ کنبکرکے)

**کنبکرکے** :- (ک + خ /ش + ک + ر + کے) (اس ، مذ ، ج ــــ کي)
بېخي وچ ، وچ کلک څیز ، کسکر شوے څیز ۔

**کنبکرے** :- (ک + خ /ش + ک + رے) (اس ، مذ ، ج ــــ ري) خبرغالــه ، خبرغالے ، ګګرے ، د لړمانۀ غوښه چې بېخي زیاته وریته کړل شي او نوره زیاتي وچه کلکه پاتې شي ۔

**کنبکړے** :- (ک + خ /ش + ک + ړے) (اس ، مذ ، ج ــــ ړي) د صابون یا د قروت وغېره نه پاتې شوې ټکړه ، کځګرے

**کنبکوله** :- (ک + خ /ش + کو + لَ) (اس ، مذ) د شرابو پیاله ، د میو جام ، پېک

خود بخود احد ساقي دے شرم مکړه
د توحید له شراب ډکه کړه کنبکوله (دولت)

**کنبکولے** :- (ک + خ /ش + کو + لے) (اس ، مذ ، ج ــــ لي) د جوارو هغه وړے چې دانې نهٔ لري ۔ د جوارو وړے چې تشې ښې (قوقه) وي ۔ دانې نهٔ لري ۔

**کنبکېلی** :- (ک + خ /ش + کې + ل + ی) (اس ، مو) د لوټې یا کوزې وغېره هغه برخه چې اوبهٔ ترې رابهېږي ۔ سخنت

**کنبکی** :- (ک + خ /ش + ک + ی) (اس ، مو) یو قسم بوټے دے ۔ چې کـه څاروے ئې وخوري نو ومري ۔

**کنبکی** :- (ک + خ /ش + ک + ی) (اس ، مو) د فقیر کند ، وړوکے کند

**کنبکی** :- (ک + خ /ش + ک + ی) (اس ، مو) هغه ښځه چې وار په وار ، یو کال جینۍ او بل کال هلک راوړي ۔

**کنبکے** :- (ک + خ /ش + کے) (اس ، صوت) د کوم څیز "کش" ، ، سره د راښکلو اواز ۔ کش ، د کشېدلو اواز ۔

**کنبکے** :- (ک + خ /ش + کے) (اس ، مذ ، ج ــــ کي) معتدل کال ۔

**کنبکے** :- (ک + خ /ش + کے) (اس ، مذ) ښکالو ، د تګ په وخت د پښو سپک اواز ۔

چې پرې بلوسي د نسیم غلے کنبکے وۀ
د غـونچې لــه تبسمه کوږ وښکے وۀ (حمید)

**کنبل** :- (ک + ش /خ + ل) یا (خ + ک + ل) (مص) (۱) راښکل ، راکښـل ، ځان کش کول (۲) وښکل ، وباسل ، وېستل ، اېستل (۳) برداشت کول ، زغمل ، صبر کول

**باد ــــ د چانه** :- غرور اېستل ، لوئي ختمول ۔

**بنې ــــ** :- (ب + ڼ + ې ــــ) سپکـول ، سپکي ستغي ویـل چاتـه ۔ د حیانه پاکول ، بې عزتي کول ۔

**بنیاد ــــ** (ب + ن + یا + د ــــ)

**بونسټ ــــ** بو + ن + س + ټ ــــ)

**جوړه ــــ** :- (ج + ر + ړَ ــــ)

**جوړې ــــ** :- (ج + ر + ړې ــــ)

**جوړه ــــ** :- (ج + ړَ ــــ)

**جوړې ــــ** :- (ج + ړې ــــ)

**نوغے ــــ** :- (نو + غے ــــ) بېخي ورکول ، نېست نابود کول ۔

**پښې ــــ** :- (پ + ش/خ + ې ــــ) یا (خ + پې ــــ) پښې اباسل ، خپې اباسل ۔ مجازاً د یو ځاے نه غلے شان وتل ، تلل ۔ د یو ځاے نه تښتېدل ، یو ځاے پرېښودل ، یا یو ځاے نه وتل ۔

**ځان ــــ** :- ((د) زا + ن ــــ) د یو کار نه ځان لرې کول ۔ د کوم کار نه پټېدل

**زړهٔ ــــ** (ز + ړ + ه ــــ) ویردل ، ویره تېرول ، په چا ۔ خوفزده کول ۔ په چا بې خیالي کنبې ډز ناري کول ۔

**زیار ــــ** :- (ز + یا + ر ــــ) محنت کول ، خواري کول ، تکلیف زغمـل ، سختي تېرول ۔

**ساه ــــ (د چانه)** :- (سا + (ه) ــــ) ډېر زیات ویرول ، ډېر سخت رعب کنبې راوستل ۔

**سترګې ــــ (په چا)** :- (س + ت + ر + ګې ــــ) (۱) غصه کول (په چا) ، قهر کول (۲) دباو کنبې راوستل ، رعب کنبېنول (په چا)

**سر ــــ** :- (س + ر ــــ) غېبېدل او په بل ځاے کنبې ښکاره کېدل ۔

**غُل ــــ (د چانه)** :- (غُ + ل ــــ) ډېر زیات وهل ، د بُسو څخې جوړول ۔

**غلطۍ ــــ** (غ + ل + ط + ی ــــ) د چا په لیک کنبې غلط ځایونه په ګوته یا په نخښه کول ، چان بین کول ۔

**قروت ــــ (د څهٔ نه)** :فائده اخیستل ، فیض اوچتول ۔

**کار ــــ د چانه** :- (کا + ر ــــ) د چا نه خپل غرض یا مقصد پوره کول ۔

**کفر ــــ د خولې نه** :- داسې خبرې کول چې سړے پرې کافر کېږي ۔

مجازاً :- کنځل کول ، خراب خراب کنځل کول ۔

**لاس ــــ** :- (لا+ س ــــ) تعلق غوڅول ، برخه نهٔ اخیستل ، (په څهٔ کار کنبې) یو طرف ته کېدل محنت پرېښودل ، خپل شکست منل ۔

**لاس ــــ د ګرېوان نه د چا** :- د چا په معامله کنبې دخل نهٔ ورکول چا سره جګړه ختمول ۔

**له سترګو ــــ** :- (ل + س + ت + ر + ګو ــــ) (۱) لـه (د) نظر د اېستل ۔ پـه غور سره کتل ، جائزه اخیستل (۲) د نظره کول ۔

**کنبل** :- (ک + ش/ + ل) یا (خ + ک + ل) (مص) لیکل ، لیک کول ۔

**کتاب ــــ** :- (ک / کي + تا + ب ــــ) کتاب لیکل ، کتاب تصنیف کول ۔

**کنبلول** :- (ک + ش + ل + و + ل) یا (خ + ک + ل + و + ل) (مص) بوسه ورکول ، چومل ، ښکلول ، خکول ۔

**کنبلے** :- (ک + ش + لے) یا (خ + ک + لے) (صف ، ج ــــ لي)
(۱) ښائسته ، ښکلے ، خکلے ، شکلے (۲) معشوقه ، محبوب

**کنبلے** :- (ک + ش + لے) (اس ، مف ، مذ ، ج ــــ لي) لیکلے شـوے پـه لیک کنبې راوستے ۔

**کنبلے** :- (ک + خ / ش + لے) (اس ، مذ ، ج ـــ لي) د تقدیر لیک ، تقدیر ، د خداے کړۀ

**کنبلے** :- (ک + خ / ښ + لے) (صف) را ایستلے

**ــــ توره** :- (ــــ تو + رَ) را ایستلې توره ۔

چې دا کنبلے تــوره راغے یار د چا دے
وجواب ته شي ور وړاندې کار د چا دے (حمید)

**کښندرے** :- (ک + خ / ش + ن + د + رے) (اس ، مذ ، ج ـــــ ري) (۱) هغه کوړ لرګے کوم چې د بار په تړلو کښې پکارولے شي ۔ (۲) هغــــه لرګے چې ښاروي پرې تړلے شي ۔

**کښـــندے** :- (ک + خ / ش + ن + دے) (اس ، مـــو ، ج ـــــ دي) دهقـــان ، زميندار

**کښـــندے** :- (ک + خ / ش + ن + دے) (اس ، مـــذ ، ج ـــ دي) ښـــوندے ، ښونېدے

**ـــــ کول** :- ښوندے کول ، ښونېدے کول ۔

**کښنه** :- (ک + خ / ش + نَ) يا (خ + ک + نَ) (حمص) وښکنه ، وباسنه ، وېستنه (,,کښل ،، مصدر سره چې کوم الفاظ د محاوره په طور راځي ۔ هغه ټول کښنه سره هم راځي)

**کښنه** :- (ک + خ / ش + نَ) يـا (خ + ک + نَ) (حمص) ليکنـه ، پـه ليـک کښـې راوستنه ۔

**کښواېل** :- (ک + خ / ش + وا + ئ + ل) (اس ـ مذ) فتح (په نمانځه کښې)

**کښول** :- (ک + خ / ش + و + ل) يـا (خ + ک + و + ل) (مـص) (۱) راښـکل ، ځان ته کش کول ۔ (۲) يو څيز په بل څيز مږل او اواز ترې وښکل ۔ لکه :- قلم په کاغذ کښول ۔ (۳) ښويول ۔

**کښوندۍ** :- (ک + خ / ش + و + ن + د + ۍ) (اس ، مو) د پړي هغه برخه چې د بار د تړلو په وخت کوږ لرګي کښې اچولے شي ۔

**کښوندے** :- (ک + خ / ش + و + ن + دے) (اس ، مذ ، ج ـــ دي) هغه کوږ لرګے کوم چې د کوچيانو د خيمې د بانس په سر لګېدلے وي او د خيمې پړے ورسره کلکولے شي ۔

**کښـه** :- (ک + خَ / شَ) (اس ، مـو ، ج ـــ کښـې) (۱) (و ـــ کښـندرے) (۲) ورين کورے ، ترنګڼ ۔

**کښې** :- (ک + خ / شے) (اس ، مـذ ، ج ـــــ ښـي) دهقـان ، زميـندار ، هغـه دهقان چې پټي له اوبهٔ ورکوي ۔ اوبهٔ خور کوونکے ۔

**کښې** :- (ک + خ / شے) (اس ، مذ ، ج ـــ ښي) خسي ، پل ، هغه چې خوټې نهٔ لري ۔

**ـــــ کول** :- خسي کول ، خوټې اېستل ، پلول ۔

**کښې** :- (ک + خ / شے) (اس ، مـذ ، ج ـــــ ښي) نابللے مېلمـه ، هغـه کـس چې نابللے د چا په دوډۍ يا مېلمنو کښې شامل شي ۔

**کښې** :- (ک + خ / شے) (اس ، مذ ، ج ـــــ ي) هغه سړے چې د ړوند سړي لار ښودنه کوي ۔

**کښې** :- (ک + خ / شې) (حرف جار) حرف جار دے ۔ دې کښې دننه وغېره معنې ورکوي ۔ تلفظ ئې مختلف ډوله دے ۔ يعني کې ، ک + شې ، شې ځيني خلک ئې کې يا کي هم ليکي ۔ او ځيني ئې ,, کښ ،، ليکي ۔

**ـــــ اېستل** :- (۱) ګېرول ، مبتلا کول ، ننبلول (۲) په مقابله وروستل (۳) پـه جنـګ کـول (۴) پـه مصيبت يـا جنجـال وغېـره اختـه کـول ۔ (۵) دننه کول ، داخلول ۔

**ـــــ اېستنګ** (ـــ ا+س + ت+ ن + ګ)

**ـــــ يستنګ** (ـــ ي / ئ + س ـــ) (و ـــ کښې اېستنه)

**ـــــ اېستنه** :- (ـــ ا+ س + ت + نَ)

**ـــــ يستنه** :- (ي / ئ +س + ت + نَ) (حمـص) (۱) ګېرونـه ، مبـتلا کونـه ، ننبلونه (۲) پـه مقابلـه وروستنه (۳) پـه جنـګ کونـه (۴) پـه مصيبت يـا جنجال وغېره کښې اخته کونه ۔

**ـــــ اېستونکے** :- (ـــ ا+س+تو+ن+کے)

**ـــــ يستونکے** (ـــ ي / ئ + س +تو+ ن +کے) (اس ، فـا ، مـذ ، ج ـــ کـي) (۱) ګېـروونکے ، مبـتلا کـوونکے ، ننبـلوونکے (۲) پـه مقابلـه وروستونکے (۳) په جنګ کوونکے (۴) په مصيبت يا جنجال وغېره کښې اخته کوونکے ۔

**ـــــ باسل** :- (و ـــ کښې اېستل)

**ـــــ بېدل** :- (و ـــ کښېښـودل) (دا مصـدر ,, کښېښـودل ،، مصـدر سره برغـد استعمالېږي ۔ يعني ځينې فعلونه د يو مصدر نه رغولے شي او ځينې د بل مصدر نه) ۔

**ـــــ ښودل** :- کوم څيز په يو ځاے کښې ږدل ، ځايول ، په ځاے کول ۔ (اوس عموماً کښېښودل ليکلے کېږي) ۔

**ـــــ منډل** :- (ـــ م + ن + ډ + ل) (مص) (۱) په زور زور ورداخلول ، دباوؤل ، پرېس کول ، کښېکښل (۲) چاپي کول ، زور کول ، په چا

**ـــــ وتل** :- (۱) ګېرېدل ، ننبتل (۲) په مقابله ورتلل (۳) په جنګ کېدل

**کښېدګر** :- (ک + خې / شې + د + ګ + ر) (پ تر ، اس / صف ، مذ ، مو ـــ ه) نقاش ، مصور ، کښېديار ۔

**کښېکښل** :- (ک + شې + ک +خ / ش + ل) يا (کے ـــــ) (مص) تخته کول ، دباوؤل ، دباو اچول ، پرېس کول ، فشار ورکول ۔

**کښېناستل** :- (ک + شے + نا + س + ت + ل) يا :- (کې + نا ـــ) (مص) (۱) د اودرېدل او ولاړېدل ضد (ف ـ نشستن ، اُر : *بيٹهنا*) (۲) لاندې سرته تلل ، تل ته تلل لکه :- دوره کښېناسته (۳) د سېلاب وغېره د اوبو کمېدل ۔

**ـــــ چاسـره** :- پـه غـم ښـادۍ کښـې شـريکېدل ، کـور کلـے کـول ۔ لکه :- تربوران ئې په وادهٔ کښې (راسره) کښې نهٔ ناستل ۔

**پر (په) تخت** ـــ :- (پ+ر / په + ت + خ + ت ـــ) (۱) تخـت نشـين کېـدل ، د بادشاهۍ په تخت کښېناستل ، بادشاه کېدل (۲) لوے مقام تـه رسېدل ، لوړ ځاے ته رسېدل ۔ (۳) بې غمه کېدل ، بې فکره کېدل (۴) رفع حاجت کول ، غُل کول ۔

**(په) قلا** ـــ :- (پ) + ق + لا + ر ـــ) په ارام سره کښېناستل ۔ په کوم جنګ جګړه يا بحث وغېره کښې برخه نهٔ اخستل ، يوې ډډې ته کېدل ۔

**(په) کور** ـــ :- (په) کو + ر ـــ) (۱) د ملازمت نه فارغ کېدل ۔ ريټائر کېدل ۔ هېڅ کار نهٔ کول ۔ (۲) د ملازمت نه وتل ، د نوکرۍ نه اېستلے کېدل ۔

**په لوره** ـــ (پ + ل (ؤ) + رَ ـــــ) پـه اوچت ځـاے کښېناسـتل ۔ مجازاً د جنګ جګړې څخه په ډډه کېدل ۔ او تماشه کول ۔ د شر فساد نه لرې کېدل (عموماً په داسې موقع وئيلے شي چې کوم سړے جنګ يا فساد جوړ کړي او بيا ځان ترې په ډډه کړي او تماشه کوي) ۔

**د خېر په ډېرۍ** ـــ : (و ـــ په لوره کښېناستل)

**کښېنول** :- (ک + ې / شې + نَ + و + ل) يا (کې + ن ـــــ) (مص) د اودرول يا ولاړول ضد دے ۔ (ف : نشاندن ، اُر : بٹهانا)

**پـه سـبق** ـــ :- (پ ، + س + ب + ق ـــ) د ماشـوم پـه اول ځـل مدرسـه ، جماعت وغېره کښې د تعليم دپاره داخلول ۔

**په کور** ـــ (پ + کو + ر ـــ) د نوکرۍ نه اېستل ۔

**کښېوتل** :- (ک + ې / شې + و + ت + ل) يا (کې + و + تل) (۱) راګېرېـدل ، ننبتل (۲) ننه وتل ، داخلېدل (۳) يو بل سره په جنګ کېدل (۴) يو بل سره په مقابله کېدل (۵) په پرزولو کېدل

**کښېوتنه** :- (کې / ک + ې / شې + و + ت + نَ) (حمص) (۱) ګېرېدنه ، ننبتنه (۲) ننوتنه ، داخلېدنه (۳) په خپله کښې په مقابله کېدنه (۴) په پرزولو کېدنه (۵) په جنګ کېدنه

**کنبېوتے** :- (ک + شېِ + و + تے) یا (کېِ + و + تے) (اس ، مف ، مذ ، ج ــــ تې) (۱) ګېر شوے ، نښتے ، ګرفتار (۲) ورننوتے (۳) چا سره په جنګ کښې یا په مقابله کښې یا په پرزولو کښې اخته۔

**کنبېوست** :- (ک + شېِ + و+س + ت) یا (کېِ + و + س + ت) د ,,کنبېیست،، بدل شکل دے۔ (و ــــ کنبېیست)

**کنبېیستل** :- (ک + شېِ + ئ + س + ت + ل) یا ـ کېِ + ئ / ا + س + ت + ل) (مص) (۱) ګېرول ، نښلول ، ګرفتارول (۲) داخلول ، (ور) دننه کول (۳) په جنګ یا په مقابله وغېره وروستل۔

**کنبېیستنه** :- (ک+شېِ+ ئ + س + ت + نَ) یا (کېِ + ئ *ا+ س + ت + نَ) (حمص) (۱) ګېرونه ، نښلونه ، ګرفتارونه (۲) داخلونه ، دننه کونه (۳) په خپله کښې په جنګ یا په مقابله وروستنه۔

**کعب** :- (ک + ع + ب) (ع ، اس ، مذ) (۱) ګیټې ، د پښې بهر طرف ته وتې هډوکي ، ښنګرے ، غوز (۲) هغه څلور ګوټیز هډوکے (یا بل کوم داسې څیز) چې جوارګر پرې جواري کوي۔ دانه

**کعبتین** :- (ک + (ع) + ب + تے + ن) (ع ، اس ، تشنیه) هغه دوه څلور ګوټیز هډوکي چې د یو نه تر شپږو پورې خالونه پرې لګېدلے وي۔ او جوارګر پرې جواري کوي۔ د جوارۍ دانې ، ګټې ، چوسر هم داسې دانو سره کولے شي۔

**کعبه** :- (ک + ع + بَ) (اس ، مع) په مکه معظمه کښې د بیت الله نوم چې د یو مربع شان کوټې شکل کښې جوړه شوې ده۔ چې د مسجد حرام په مېنځ کښې ده۔ د دې بنیاد اول سر کښې حضرا ابراهیم علیه السلام اېښے وۀ۔ بیا ئې څو څو ځله مرمت وشۀ۔ حضور پاک صلی الله علیه وسلم اول اول بیت المقدس ته نمونځ کاوۀ۔ خو وروستو د خدائے پاک په حکم ئې مخ د بیت المقدس نه کعبې ته ور وګرځاوۀ۔ له دغه پسه همدغه د مسلمانانو قبله شوه۔

د حضور پاک صلی الله علیه وسلم د پیغمبرۍ په وخت دلته درې سوه او شپېتۀ بُتان پراتۀ وو۔ حضور صلی الله علیه وسلم کعبه د بتانو نه پاکه کړه۔ په شعرونو کښې د کعبې او د بُتانو ذکر ډېر راځي۔

**کغ** :- (ک + غ) (اس ، صوت) د چرګ چرګې اواز چې د مرۍ نه ونیوے شي۔

**کغا** :- (ک + غا) (اس ، صوت) د چرګ چرګې د کغ کغ (مسلسل) اواز۔ (خصوصاً هغه اواز چې د مرۍ نه ونیوے شي) د مرۍ د خَپې کېدلو سره اواز۔

**کغاچ** :- (ک + غا + چ) (اس ، مذ ، ج ــــ ان) مخالف سړے ، مخالف

**کغاچ** :- (ک + غا + چ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) په جامو کښې نابرابرے

ــــ **توب** :- (ــــ تو + ب)

ــــ **والے** :- (ــ وا + لے) (۱) دښمني ، مخالفت (۲) په جامو کښې نابرابرے

**کغار** :- (ک + غا+ ر) (اس ، صوت) (و ــــ ګغهار)

**کغالے** :- (ک + غا+ لے) (اس ، مذ ، ج ــ لي) (۱) کوغالے ، ډوغل (۲) هغه کوغالے کوم چې په کیچړۍ کښې د غوړو د اچولو دپاره جوړولے شي (۳) کورکے۔

**کغر** :- (ک + غا +ر) (صف ، مذ ، مو ــــ ه) چغر ، ببنګے

**کغن** :- (ک + غا + ن) (صف ، مذ ، مو ــــ ه)

هغه څیز چې مرۍ نه ئې د ,,کغ کغ،، په شانتې نښتے اواز راوځي۔

**کغند** :- (ک + غا + ن + د) (و ــ کغن)

**کغول** :- (ک + غا + و + ل) (مص) (۱) په کغهاري کول ، چرګ د مرۍ نه نیول چې د کغ کغ (بند بند) اواز وباسي۔ (۲) څوک بې مطلبه غږول د چا نه بې مطلبه خبرې اېستل۔

**کغهار** :- (ک + غا + ها + ر) کغهارے :- (ــــ رے) (اس صوت) د چرګ چرګانو د کغ کغ مسلسل اواز۔ (د مرۍ د خپې کېدلو نه پس چې کوم اواز ووځي)۔

**کغېدل** :- (ک + غېِ + د + ل) (مص) تغېدل ، د چرګې اواز کول۔ (متل) چرګه که ښې دپاره ټینګوې هم کغېږي او که بدې دپاره ئې ټینګوې نو هم کغېږي۔

**کغېدل** :- (ک + غېِ + د + ل) (مص) د ,,کغ کغ،، اواز اېستل۔ د چرګ چرګې د مرۍ نه نیولے کېدلو نه پس کغهار کول۔

**کغېدنه** :- (ک + غېِ + د + نَ) (حمص) د چرګ (د مرۍ د خپې کېدلو په وجه) د کغ کغ اواز اېستنه۔ کغ کغ کونه۔

**کف** :- (ک + ف) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) تلے ، د لاس ورغوے ، غروے

**کف** :- (ک + ف) (ف ، اس ، مذ) ځګ ، زګ

بې له کفره ذنوب ستا په مخ بخښل شي
کــه بسیار وي د محیط دریاب له کفَ (حافظ)

ــــ **دریا** :- (ــــ د + ر + یا) (ف ، تر ، اس ، مذ) د دریاب یا د سمندر ځګ

**کـف** :- (ک + ف) (انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د قمیص د لستوڼي هغه برخه چې د مړوند په خوا کښې پرانستے کېږي او په دغه ځائے کښې برغده کېړه لګېدلې وي او د بندولو دپاره پرې بټن لګېدلې وي۔

**کفار** :- (کُ + ف + فا + ر) (ع ، اس ، ج) د ,,کافر،، جمع ده ، کافران

**کفاره** :- (ک + ف + فا + رَ) (ع ، اس ، مو ، ج ــــ رې) پټه وونکے ، پرده اچوونکے ، لرې کوونکے۔ د ګناه یا د خطا بدل ، کوم چې د خدائے پاک د طرفه مقرر دے۔ لکه د قسم ماتولو بدل یا کفاره دا ده چې هغه به یو غلام ازادوي۔ او که غلام نۀ شي ازادولے نو درې ورځې به روژې (روجې) نیسي۔ که دا هم نۀ شي کولے نو لسو مسکیانو له به ډوډۍ ورکوي یا به جامې ورکوي۔ دغه شان د روژې (روجې) د ماتولو کفاره دا ده چې دوه میاشتې به روژې (روجې) نیسي۔ که دا نۀ شي کولے نو شپیتو مسکینانو له به ډوډۍ ورکوي۔

ــــ **ادا کول** :- (۱) د کوم ګناه یا دخطا په بدل کښې د شریعت د طرفه مقرر شوې خبرې پوره کول (د تفصیل دپاره (و ــــ کفاره) ۔ د ګناه په بدله کښې خېر خېرات ورکول ۔ (۲) د غلطۍ یا د خطايۍ په بدل کښې د ځانه څۀ نېک کار کول۔ د خپلې بدۍ د زیاتي بدل خلاصول۔ د خپلې غلطۍ په بدله کښې څۀ ښۀ کار یا نېکي کول۔

**کفاف** :- (ک + فا + ف) (ع ، اس ، مذ) (۱) د معاش کفایت

عاشقان د قناعت په کرسۍ ناست دي
د زاهــد زړۀ ولاړ زېــرمې دکفــاف ته (حافظ)

(۲) روزانه خرڅ ، د ورځې ورځې خرڅ (۳) وظیفه (۴) برابر ، همسر۔

**کفالـت** :- (ک + فـا + ل + ت) (ع ، اس ، مـذ) ضـمانت ، ذمـه واري ، ضـامن کېدنه

ــــ **کول** :– ، د چا ضمانت کول ، ضامن جوړېدل۔ ذمه واري اخیستل۔

**کفایت** :- (ک + فا + ي + ت) (ع ، اسم ، مذ) (۱) کافي کېدنه ، بس ,,بودنه،، ضرورت پوره کونه۔ (۲) بچت ، کم خرڅي۔

ــــ **شعار** :- (ــــ ش + عا + ر) (عف تر ، صف ، مذ ، مو ــــ ه)

کم خرڅ کوونکے ، کم خرڅه۔ په خرڅ کښې بچت کوونکے۔ په پیسې ټکې لګولو کښې د بچت او احتیاط نه کار اخستونکے۔

ــــ **شعاري** :- (ــــ ش + عا + ري) (عف تر ، اس ، مو) کم خرڅي۔ کم خرڅ کونه۔ پیسې ټکې لګولو کښې احتیاط کونه۔ د هر یو څیز په لګولو او خرڅ کولو کښې بچت کونه۔

**کفتار** :- (ک + ف + تا + ر) (ف ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) کوړ ، کوړ بل (کاکړ)

مشهور ځنګلي ځناور ـ چې وروستيني پښې ئې لنډې وي ـ ځکه ئې ملا کږه ښکاري ـ او کوږ بللے شي ـ

**کفچه** :- (ک + ف + چَ ) (ف ، اس ، مو ، ج ـــــ چې ) وړوکے کفګير ، چې د کړهي يا ديګ وغېره نه ځګ پرې راټولوي او بهر غورځوي ـ

**کفچه مار** :- (ک + ف + چَ + ما + ر ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان ) د مارانو يو قسم چې ډېر زهرناک وي ـ

**کفر** :- (ک / کو + ف + ر ) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه )(۱) انکار ، نه منـنه ، د خدا ے پاک يا د خدا ے پاک د حکم منلو نه انکار د اسلام نه انکار کول ـ بې ديني ، الحاد (۲) هغه کار چې مسلمان سړے پرې شرعاً کافر کېږي ـ (۳) مجازاً زور ظلم ، ګران فروشي ـ بې انصافي ـ

**ـــــ غړول** :- (۱) داسې خبرې کول چې شرعاً پرې مسلمان سړے کافر کېږي ـ (۲) مجازاً سخت کنځل کول ـ

**د ـــــ کفر فتوی ورکول** :- د چا د کوم عمل يا د وينا په وجه د شرعې مطابق د کافر حکم کول شرعاً کافر ګرځول ـ

**کفران** :- (ک / کو + ف + را + ن ) (ع ، اس ، مذ ) نۀ منـنه ، نۀ منل ، ناشکري ، ناسپاسي ـ

**ـــــ نعمت** :- ( ـــــ ن (ع) + م + ت ) (عف تر ، اس ، مذ ) د نعمت ناشکري ، احسان نۀ منـنه ـ احسان فراموش ـ نمک حرامي ـ

**کفرستان** :- (ک + ف + ر+س + تا+ن )(عف تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) (۱) د کافرو ملک ، هغه ملک چې په کښې کافران اوسي ـ (۲) هغه ملک يا سيمه چېرته چې د کفر د کارونو ډېر ارتکاب کېږي ـ يا چېرته چې ډېر زيات ظلم زياتے او بې انصافي کېږي ـ

چې مې وليد کفرستان د تورو سترګو
عقل هوش مې له خاطره د اسلام لاړ (حميد)

**کفش** :- (ک + ف + ش ) (ف ، اس ، مذ ) پڼه ، پيزار ، موچنه ، ګاولے ـ

**ـــــ دوز** :- ( ـــــ دو + ز )(ف تر ، اس ، صف ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــــ ه ) پڼې ګنډونکے ، پڼه ساز ، موچنې جوړونکے ، موچي ، چميار ـ

**کفګير** :- (ک + ف + ګي + ر )(ف ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) د بټيارانو هغه وسپنيزه اله چې اوږد لاستے لري ـ او سر ئې پلن سوري سوري وي ـ په دې باندې د کړهي يا د ديګ نه د پخېدونکي څيز نه ځګ راغونډوي او بهر غورځوي يا پرې وريژې وغېره اړوي را اړوي ـ

**کفن** :- (ک + ف + ن ) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) هغه کپړه چې مړے په کښې نغاړي ـ د مړي جامه (دا ګنډلې نۀ وي بلکه د نوي سپين ټوکي لوے واړۀ ځادرونه وي ) ـ

ډېر دې غمونه د جامو کړي دي
جامه ئې پاتو وار د کفن دے (سعيد خټک)

**ـــــ په سر** :- ( ـــــ پ + س + ر )(ف پ تر ، تف )
کفن په خپل سر اچـلے ـ يعني په جنګ کښې مرګ ته تيار راوتے ـ سر په تلي کښې اېښے ـ جانباز ، سرفروش ـ

**ـــــ دزه** :- ( ـــــ د + ز + د ) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان )
کفنونه پټوونکے ، کفنونه کښونکے ، ادنی او حقير غل ـ

**ـــــ شلول** :- ( ـــــ ش + ل + و + ل )

**ـــــ شېرل** :- ( ـــــ (ت) سي + ر + ل ) (مجازاً ) د اوږدې بيماري نه رغېدل د مرګي حال سړي د مرګ نه بچ کېدل او ژوندے پاتې کېدل ـ

**په ـــــ لګېدل** :- کپړه يا پيسې وغېره په کفن خرڅ کېدل ـ عموماً د قسم په طور وئيلے شي ـ لکه :- که ما څخه روپۍ وي نو زما په کفن دې ولګي ـ

**سور ـــــ ګور ته تلل** :- شهيد مړ کېدل ـ په جهاد کښې د ډېر زيات زخمي کېدلو نه پس مړ کېدل ـ

پلار مې سور کفن و ګور ته لاړ نيکونه واړه
ډېر خلک پرې ومړ خون ئې لاړ شه تر عالمه (خوشحال)

**ګور ـــــ** :- (ګو + ر ـــــ ) (عپ تر .اس ، مذ ) قبر او کفن ـ مجازاً : د کفن او د ښخېدلو خرڅ ـ هغه رقم چې د کفن دفن دپاره پکارولے شي ـ

**کفني** :- (ک + ف + ني )(ف ، اس ، مو ) هغه اوږد ارت قميص چې يو خاص قسم ملنګان ئې اغوندي ـ اصلاً دا هغې لوے ځادر ته وائي چې برغد کړے شي او په برغه کړے ځاے لږ شان وشلولے شي ـ دغه شلېدلے ځاے د قميص د غاړې په شان د مړي په مړۍ کښې واچولے شي ـ

**کفو** :- (ک + فو ) (ع ، اس ، مذ ) برابر ، سيال ، په قام او په نسب کښې برابر ، د يو قام قبيلې د يو خاندان او خېل قبيلې ـ

**کفور** :- (ک + فو + ر )(ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه ) (۱) سخت انکار کوونکے ، کفر کوونکے (۲) ناشکري کوونکے ، ناسپاس ـ

**کفور** :- (ک + فو + ر )(ع ، اس ، مذ ) ناشکري ، ناسپاسي ، نمک حرامي ـ

**کفيل** :- (ک + في + ل ) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه ) (۱) کفالت کوونکے ، ضامن ، ذمه داري اخستونکے ، ذمه دار (۲) انچارج ، د لوے افسر په غېر حاضرۍ کښې د هغۀ په ځاے د لاندې افسر کار کوونکے ـ

**ـــــ کېدل** :- کفالت کول ـ ذمه اخستل ، ذمه داري قبلول ، ضامن کېدل ، ضمانت کول ـ

**کک** :- (ک + ک )(هـ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) ډکے ، تيلے ، خسنے ، خلے مجازاً ډېر کم ، ډېر سپک ، ډېر حقير

اور مې پورې په منصب په نوکرۍ شه
چې تر فهم و تر نظر د مغل کک يم (خوشحال)

**ـــــ ګڼل** :- سپک ګڼل ، حقير ګڼل ـ

**کک** :- (ک + ک ) (اس ، جم ) د ګنو د رس هغه شربت چې په پخولو کښې لږ ټينګ شي ـ

**کک** :- (ک + ک ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ا ه ) د يو مارغۀ نوم دے ـ چې اکثره د سيندونو په غاړو موندے شي ـ کرېړے ـ

**کک** :- (کُ + ک ) (انګ ، اس ، مذ ) باورچي ، خانساما

**ککر** :- (کُ + ک + ر ) (انګ ، اس ، مذ ) (۱) د پخولو لوښے چې د بې داغه فولاډ نه جوړولے شي ـ (۲) پريشر ککر

**پريشر ـــــ** :- (پ + ر + ش+ش + ر ـــــ ) (انګ تر ، اس ، مذ ) د بې داغه فولاډ نه جوړ شوے د څيزونو د پخولو هغه لوښے چې د بړاس د دباو (فشار) په زور څيزونه ډېر زر پخه وي ـ

**ککر** :- (ک + ک + ر ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) د مچو ګک ، د (سرو) مچو ګبين ډومبکے ، کيکار ـ

**ککره** :- (ک + ک + رَ ) (اس مو ، ج ـــــ رې ) هغه لوے لرګے (ګرګه وغېره ) چې د ولې دپاسه کښېښودے شي چې خلک پرې د ولې نه پورې وزي راپورې وزي ـ

**ککرۍ** :- (ک + ک + ر + ی ) (ف ، اس ، مو ) پوکنۍ ، سنګ مثانه ، ډبره ـ

**ککرۍ** :- (ک + ک + ر + ی ) (اس مو ) (مروت ) د ماشومانو د لوبو څيز چې چورلولے شي ، لاټو ـ

**ککرۍ** :- (ک + ک + ر + ی ) (اس ، مو )کوپرۍ ، کپرۍ ـ

**ـــــ خوړل** :- سر ورکول ، قربان کېدل ، ځاربدل ـ

**ککرۍ** :- (ک + ک + ر + ی ) (اس ، مو ) د غر ځوکه ، څکه ، د غر ورسک ـ

**ککرے** :- (ک / کو + ک + رے ) (اس ، مذ ، ج ـــ ري ) د سپي وړوکے بچے ـ

**ککرے** :- (ک / کو + ک + رے ) (اس ، جم ) هغه چينجي يا جراثيم چې په

سترګو کښې پيدا کېږي.

**ككړ** :- (ک + ک + ړ) (صف ، مذ ، ج ـــــ ه) (۱) لړلے ، الوده ، لت پت

ترسـر ترپايه ككړ په غلو
په لاس نيولې غنچه د ګلو (خوشحال)

(۲) مفسد ، فسادي ، فتنه ګر.

**ـــــ توب** :- (ـــــ تو + ب)

**ـــــ تيا** :- (ـــــ ت + يا) (۱) ككړ والے ، ككړ شوے حالت، الوده والے، لړلے حالت (۲) فساد ، فتنه پردازي.

**ككړوزے** :- (ک + ک + ړو + زے) (اس ،جم) لړزان ، رېږدېدنه (د يخنۍ يا د ويرې وغېره له کبله)

**ـــــ وهل** :- لړزېدل ، ريږدېدل (د يخنۍ يا د ويرې وغېره لـه کبله) ګړګوزې وهل

**ككړول**:- (ک + ک + ړ + و + ل) (مص) (۱) لړل ، الوده کول ، اغشته کول . (۲) په کوم جرم يا بدکارۍ کښې ملوث کول.

**ككړه**:- (ک + ک + ړَ) (اس ، مو ، ج ـــــ ړې) د ,, ككړ ،، تانيث دے.

**ككړه**:- (ک + ک + ړَ) (اس ، مذ ، مو ـــــ ړې) په مستۍ کښې د چرګې د اواز ، د زرکې پـه مستـۍ کښې اواز (عموماً د جمع پـه شـکل کښـې استعمالېږي)

**ككړے**:- (ک + ک + ړَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) مفسد ، فساتے ، پساتے فتنه پرداز سړے.

**ككړے**:- (ک + ک + ړَے) (اس ، مـو ، ج) د ,, ككړه ،، جمـع ده .هغـه اواز کوم چې چرګه يا زرکه د مستۍ په وخت وباسي.

**ككړېدل**:- (ک + ک + ړې + د + ل) (مص) (۱) ككړ كېدل ، لړلے کېدل ، ګنده کېدل. (۲) په کوم جرم يا د بدکارۍ په الزام کښې ملوث کېدل.

**ككړېدل**:- (ک + ک + ړې + د + ل) (مص) په بده ورځ کېدل. د روزۍ يا د معاش وغېره تنګي راتلل. ډېر زيات خوارېدل. مفلس کېدل.
لکه :- په بده ورځ ككړ شو.

**ككش**:- (ک + ک + ش) (و ـــ ككښ)

**ككښ**:- (ک + ک + خ / ش) (اس ، ج) د کـوټې د چـت کولـو لوازمـات لکـه لهې د ګرې وغېره.

**ككن**:- (ک + ک + ن) (و ـــــ ككړ)

**ككنس**:- (کُ + کْ + ن + س) يا (کَ + ک + ن + س) د ,, ققنس ،، بـدل شـکل دے. (و ـــ ققنس)

**ككنسكے** :- (کُ + کْ + ن + س + کے) (ق ، اس ، مـذ ، ج ـــ کي) د يـوې ډېرې زياتې تېز پرکې مرغۍ نوم دے. چې د ,, کو کو تي تي ،، په شان اواز کوي

**ككوبے**:- (ک + کو + بے) (اس ، مذ) د ګلابو د ګلونو عرق ، عرق ګلاب

**ككورے**:- (ک + کو + رے) (اس ، مذ ، ج ـــ ري) يوخاورين لوښے دے.

د يــوۀ کولال مانډې دي
کل کترک دے که ککورے (ارزاني)

**ككوړ**:- (ک + کو + ړ) (اس ، مذ) د مارانو يو قسم
لکه : ککوړ منګور په څټ ګذار کوي. (متل)

**ككوړو** :- (ک + کو + ړو) د ,, ککوړي ،، (جمع) اضافي او مجروري وغېره شکل.

**د ـــ باجه** :- (ـــ با + ج) (اس ، مو ، ج ـــ جې) ريکاټي باجه ، ګراموفون

**ككوړے**:- (ک + کو + ړے) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــــ ړي) هغـــــه شيريني کومه چې د ګډې بزې يا د ښځې د ماده بچي په پيدا کېدلو په موقع وېشلے شي.

**ككوړے** :- (ک + کو + ړے) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) (۱) وړه غونډې ټيکۍ ، (لکه : د صابون) (۲) د ډوډۍ وړوکې شان ټيکۍ ، خصوصاً هغه چې په تنـور کښـې د ماشـومانو دپـاره لګـولے شـي .وړه ډوډۍ (ټيکولـه .... اورکزي)

چې شيندلے دې په خدا ے وي يو ککوړے
نمـايـان ئې پـه جهـان لـکه د نمر کړې (رحمان بابا)

(۳) د ډوډۍ په شان هر غونډ څيز (۴) غونډه کلچه (۵) ريکـــــارډ (د ګراموفون باجې) ريکاټ.

**ككوړے**:- (ک + کو + ړے) (ق ، اس ، مذ ، ج ـــ ړي) هلک ، چې لا ډېره بريت ئې نۀ وي شوي.

**ككوښه**:- (ک + کو + خَ / شَ) (اس ، مو ، ج ـــ ښې) کوړکوړه، کوکـو کـوتره، ګوګوشتکه.

**ككوكے** :- (ک + کو + کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) (بل) د يو مرغۍ نوم دے.

**ككونے** :- (ک + کـو + نـے) (اس ، مـذ ، ج ـــــ نـي) (۱) وړوکـے هلـک (۲) وړوکې هلک ته د مينې لفظ (۳) نـرے نـروچکے سړے ، چې د هېڅ کار نۀ وي.

**ككوے** :- (ک + کو + ے) (اس ، مذ) ملاچرګک ، هُدهُد ، ګوډې چرګ

**ككوے** :- (ک + ک + وے) (اس ، مذ ، ج ـــــ وي) ټيټارے ، ټټـوے ، ټټغ ، هغه مرغۍ چې تل د درياب په غاړه ناسته چغار کوي. (وائي چې دا په خپل چغار کښې باران غواړي. ځکه ورته په فارسۍ کښې ,,مرغ باران طلب ،، وائي)

**ككوے** :- (ک + کو + ئے) (اس ، مو) د غرۀ د يوې مرغۍ نوم.

**ككۍ** :- (ک + ک + ی) د ,, ككے ،، تانيث دے.

**ككۍ** :- (ک + ک + ی) (اس ، مو) د سترګو تور.

**ككۍ** :- (کُ + ک + ی) (اس ، مو) (۱) کوکشۍ ، بوسه ، چومه (خصوصاً د ماشومانو) (۲) خولۀ ، دهن

**ـــــ ور کول** :- کوکۍ ورکول ، بوسه ورکول ، چومه ورکول.

**ككے**:- (ک + کے) (اس ، مذ ، ج ـــــ کي) (۱) وړوکے ماشوم (۲) دمينې نه وړوکې هلک ته هم وائي.

**ګګے**:- (ک + ګے) (اس ، مذ) يو قسم ګنډ.

**کل**:- (کَ + ل) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) کل شوے ، خرئيلے شوے.

**ـــــ کېدل** :- (ـــــ کې + د + ل) (مص) خرئيلے کېدل.

نامرد مرد د چا مل مه شه
سر پـه بد نائي کل مه شه (خوشحال)

**کل** :- (ک + ل) (اس ، مذ) ګنجے ، پک

**کل** :- (ک + ل) (هـ ، اس ، جم) د مغز والـه څيـز پاتې بوس چې تېـل تـرې وبنکلے شوے وي. پيه ورو څاروو خصوصاً مېښو لـه د خوراک پـه طـور ورکولے شي. (هـ ـــ کهل)

**کل** :- (ک + ل) (اس ، مذ) د ,, کلـه ،، مخفـف دے . د سـابقې پـه طـور استعمالېږي. (و ـــ کله)

**کل** :- (کُ + ل) (ع ، صف) ټول ، درست ، پوره ، داړه ، همه ، ګرد

**ـــــ جمع** :- (ـــــ ج + مَ) ع تر ، اس ، مو) (۱) ټوله جمع ، کل ميزان (۲) ټولـه جمع کړې پنګه ، ټوله پنګه ټوله سرمايه.

**ـــــ ساري** :- کلهم ، ټول

لـم يـلـد و لـم يـولـد احـد صمـد ئې
تۀ بادشاه ئې مخلوقات دے کُل ساري ستا (عظيم)

**ـــــ کائنات** :- (ـــ کا + ئي + نا + ت) (عف ، تر ، اس ، مذ)
درست کائنات ، د کائنات ټول موجودات ، درسته دنیا .

**عقل ـــــ** (ع + ق + ل ـــــ) (عف ، تر ، اس ، مذ) بشپړ عقل ، بشپړه پوهه ،مجازاً جبرائیل علیه السلام یا د حضور پاک صلی الله علیه وسلم نور او کله ترې عرش اعظم مراد وي.

**کلاب** :- (ک + لا + ب) (ع ، اس ، ج) د ,, کلب ،، جمع ده.سپي ، سپیان

**کلاچي** :- (ک + لا + چي) (اس ، مع) په ډېره اسمعیل خان کښې د یوې لوئې قصبې نوم دے.چې د تحصیل مرکز هم دے.

**کلا خان** :- (ک + لا + خا + ن) (اس ، مع) دبلوچستان د سیمې یو مړنے پښتون چې پېرنګیانو سره ئې جنګونه کړي دي اوس په غاړو کښې یادولے شي.

د ورګے په چوران
په ګوره ګړ سو کلاخان (غاړه)

**کلاس** :- (ک + لا + س) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) درجه ، مرتبه ، پایه (۲) طبقه ، د یوې خاصې درجې خلک (۳) جماعت ، لکه د سکول د مکتب یا د کالج د درس یوه درجه (۴) د سکول ، مکتب یا د کالج د درس د یوې درجې ټول طالبعلمان (یا طالباني) (۵) ډله ، ګروه ، ټولے (خصوصاً هغه چې په خپله کښې کوم مشترک خصوصیت لري) .

**ـــ فیلو** :- (ـــ فې + لو) (انګ تر ، اس ، مذ / مو) هم جماعت ، هم سبق.

**تهرډ ـــ** :- (تهـ / ت + ر + ډ ـــ) (انګ تر ـــ صف) (۱) د دریمې درجې ، د دریمې مرتبې (۲) د اخري درجې ، د ټولونه د کمې یا کښته درجې ، معمولي ، ادنیٰ (عموماً د څیزونو وغېره درې درجې کولے شي ـلکه د ریل ګاډي درجې ، په امتحانونو کښې د پاس کېدلو درجې وغېره ـیعني د دریمې نه لاندې درجه نه وي په دې وجه تهرډ کلاس څیزونه مراد د ټولو نه د لاندې درجې څیز وي) .

**داکابرو ـــ** :- (د ، ا + کا + ب + رو ـــ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه)
د غټانو جماعت ، د مشرانو یا د لویو خلکو ډله.

**سېکنډ ـــ** :- (سې + ک + ن + ډ ـــ) (انګ تر ، صف) دوېمه درجه ، دوېمه مرتبه.

**فسټ ـــ** :- (ف + س + ټ ـــ) (انګ ، تر ، صف) د اولې درجې ، د اعلی درجې

**کلاسېک** :- (ک + لا + سې = ک) یا (ک + لې + س + ک) (انګ صف)
لرغونے ، اصلي معیاري اثر د پخواني روم او یونان کلچر (کلتور) ته منسوب.نامتو لیکوال یا ادب.

**کلاسیکي** :- (ک + لا + سي + کي) یا (ک + لې + س + کي) (انګ پ تر ، صف) کلاسیک ادبیات ، نامتو ادبیات.

**کلاغ** :- (ک + لا + غ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) کارغهٔ ، کارګه ، قارغهٔ

ګل دعندلیب دے په قسمت دے په نصیب دے
دروـــه دروـــه دروـــه پـه جېغه ګرځه کلاغه (خوشحال)

**کلاغې** :- (ک + لا + غې) (اس ، مذ ، ج ـــ غي) هغه رومال چې په سر تړلے شي.سربند ، سرتړونے ، سرپېچک (دا عموماً د تور رنګ وي) .

**کلاک** :- (ک + لا + ک) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) لویه ګړۍ چې په دېوال زوړندولے شي.یا چې په مينارونو کښې لګولے شي.ګنټه ، ګړیال.

**کلاکلا** :- (ک + لا + ک + لا) (اس ، مو) د هلکانو د یوې لوبې نوم دے.

**کـــلال** :- (ک + لا + ل) (هـ ، اس ، ج ـــ ان) شراب خرڅوونکے ، شراب جوړوونکے

**کلال** :- (کُ / کو + لا + ل) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) خاورین لوښي جوړوونکے

جوهري وي جوهر پلوري
خاورې اغړي کلال شي (خوشحال)

**د ـــ په ځاے خو داغل** : ضرورت د خر د داغلو وي او حکم د کلال د داغلو کول.مجازاً د ګناه ګار په ځاے بې ګناه له سزا ورکول.

**کلالانو سپے** :- هغه سپے چې نهٔ غېږېږي او نهٔ چیچل کوي.

**کلاله** :- (ک + لا + لَ) (ع ، اس ، مذ) هغه سړے چې نهٔ خوئې پلار وي او نهٔ زوے.

**کلالي** :- (کُ / کو + لا + لي) (ف ، اس ، مع) د کلال پېشه ، خاورین لوښي جوړونه.

**کلالـي** :- (کُ / کو + لا + ي) (اس ، مو) (۱) د کلال سره متعلق ، کلال ته منسوب.(۲) (و ـــ کلالۍ مچۍ) .

**کلام** :- (ک + لا + م) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه)
(۱) خبره،سخن،ګفتګو ، خبرې اترې (۲) (نحو) هغه عبارت چې د دوو کلمو (لفظونو) نه جوړ شوے وي.د زیاتو هېڅ حد نشته . (۳) د یو شاعر شعرونه ، یا د شعرونو مجموعه (۴) هغه علم چې په کښې نقلي مسائل په عقلي دلیلونو ثابتولے شي.د متکلمینو علم.

**ـــ الله** :- (ـــ (م + ل) + لا + ه) (ع ، تر ، اس ، مذ) د الله پاک کلام ، د الله پاک خبرې یا بیان ، مراد ترې قرآن پاک دے

م مـجـيـد کـلام الله دے
پرې ئې نهٔ ږدې حبل الله دے حافظ

**ـــ الله پورته کول** : په قرآن مجید قسم خوړل.

**ـــ الام** :- (ـــ ا + لا + م) (پ تر ، اس ، مذ) الام د تاکید دپاره راوستے شي.خبره اتره ، خبره او اتره ، سوال جواب.

**د ـــ الله وهل** :- د قرآن مجید قسم پورته کول.لکه : ما د کلام الله ووهي چې ...

**کلامي** :- (ک + لا + مي) (عف تر ، اس مذ) (۱) ,, کلام ،، سره تعلق لرونکے ، کلام ته منسوب (۲) علم کلام ته منسوب.او علم کلام هغه علم دے چې په کښې عقیدې د عقل په ذریعه ثابتولے شي.

**کلان** :- (ک + لا + ن) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) د ,, حورو ،، ضد دے.لوے بزرګ ، مشر ، اوږد ، اوچت ، وسیع ، پراخ ، فراخ ، ارت پلن.

**ـــ کار** :- (ـــ کا + ر) (ف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) لوے کارې ، مشروټ.

**ـــ کاري** :- (ـــ کا + ر ي) (ف تر ، اس ، مو) مشروټې ، مشر مشر کېدل ، د خپل عمر یا حېثیت نه ځان زیات ښودل.

**ـــ کاري کول** :- مشروټې کول ، مشر مشر کېدل ، ځان ښئیل ، د ځان نه مشروټے جوړول.

**کلانګے** :- (ک + لا + ن + ګے) (اس ، مذ) (بل) د غرهٔ د یوې مرغۍ نوم دے.

**کلاني** :- کبر ، لوئي.

هنر لاړ د دین غلطه کړه بې شکه
چې خصلت پېشه ئې کبر کلاني ده حافظ

**کلانۍ** :- (ک + لا + ن + ۍ) (صف ، مذ) لوے والے ، لوئي
حقیقي مجازي عشق بدر و هلال دي
یا دوه لعل دي په خوردۍ په کلانۍ حافظ

**کلاوه** :- (ک + لا + وَ) (صف) وریت ، سور کړے غټ غټ رېشلے سپنسین تار دغه تار دم کړي او د ماشومانو غاړې ته ئې اچوي.دغه تار په سور او زیړ رنګونو برګ رنګ کړے شي.او د دم کولو نه پس د ماشومانو غاړو ته اچوي یا پرې د ناوې د نکریزو (نکریځو) پوښۍ تړلے شي.

**کلاوه** :- (ک + لا + وَ) (اس مو ، ج ـــ وې) (۱) اټه ، اټۍ ، سپنسین تاري

چې د نلکۍ نه چاپېره کړے شوے وي .یا په اټېرن تاو کړې شوے وي چې مېنځ ئې خالي وي.

**کلاوے**:- (ک + لا+ وے)(۱) د ,, کلاوه ،، جمع ده. (۲) د ,, کلاوه ،، اضافي او مجروري وغېره (متغیره) شکل.

**د___سر ور کېدل** :- کلاوه رنجړه کېدل .مجازاً معامله داسې پیچیده کېدل چې حل ئې نهٔ موندلے کېږي.معامله داسې خرابېدل چې سمون ئې نشي راتلے.د معاملې په پته نهٔ پوهېدل چې څهٔ وکړي.

**کلاه**:- (ک + لا+ (ه)(ف ، اس ، مؤ ، ج___گانې)(۱) اوږده ټوپۍ چې د مالوچو باتۍ په کښې ورکړے شوې وي .کوله ، کُله (ځینې ساده وي) خو په ځینو طیله ختلې وي.او عموماً لنگۍ پرې ترلے شي ) (۲) تاج

د جمشېد او سکندر فلک پرې نهٔ ښوي

پـرې بـه نـهٔ ږدي همېشه کلاه د چا (خوشحال)

**کلابي**:- (ک + لا+ يي)(اس ، مو) د اوبو په ذریعه دال وغېره صفا کونه.

**کلب**:- (کْ+ ل + ب)(انگ ، اس ، مذ ، ج___ونه)(۱) انجمن ، ټولے ، ډله ، مجلس (۲) هغه ځاے چېرته چې په مازیگري کښې لوے افسران د وخت تېري او مختلفو لوبو وغېره دپاره جمع کېږي.

**کلب** :- (ک + لْ + ب)(ع ، اس ، مذ) سپے ، سگ.

**کلبه**:- (کَ + ل + بَ)(۱) گټ ، گوښه ، تنگه او تاریکه کوټه (۲) دوکان.

**کلبه**:- (کُ + ل + بَ)(ف ، اس ، مو ، ج___بې)وړوکے شان کور ، تنگه او تیارهٔ کوټگۍ ، د غریبانو جونگړه.

**کلپ**:- (ک + لْ + پ)(صف ، ډېر ، مو__ه) ډېر سخت لکه : په نس مې کلپ درد دے.

**کلـپ** :- (ک + لُ + پ)یـا (کُ ، لْ + پ)(ع پـه تـر ، اس ، مـذ ، ج___ونـه) د,,قفل،، بدل شکل دے .جرنده ، جندره ، چړک (کڼ) کنجي (سود) ، چورک.

**کلـپ** :- (کَ + ل + پ)(اس ، مـذ ، ج___ونـه)(۱) د ,, قلـب ،، بـدل شکل دے .کوټه ، ناسره ، ناکره ، ناچل (۲) مجازاً کوټه ، درغـل ، منافق سړے.

**کلپ** :- (کَ + ل + پ) (صف ، مذ ، مو___ه) سخت ، تېزي سره ، بد بد لکه : کلپ گذار شو (سخت په ځمکه را وغورزېد)

**کلپکے**:- (ک + ل + پ + کے)(اس ، مـذ ، ج___کي) د ,, کلپ ،، تصغیر دے.وړوکې کلب ، وړوکې جندره ، جرندگۍ.

**کلپول**:- (ک + ل + پ + وُ + ل)(مص) کلپ کـول ، جرنـده کـول ، جنـدره لگول.قفل ور اچول ، چړک لگول ، چورک کول.

**کلپول**:- (ک + لُ + پ + وُ + ل)(مص)یو بل سره نښلول.سره پېوست کول.یو ځاے کول.

**کلپه**:- (ک + ل + پَ (ه) د ,, کلپ ،، مؤنث صیغه ده.کوټه ، ناسره.

**___ناغسه، په زړهٔ** :-په زړهٔ کوټه او کمینه .لکه : په زړهٔ کلپه ناغـه پـه خبـره نـهٔ شرمېږي.

**کلپی**:- (ک + ل + پَ+ ی)(اس ، مو) هغه خاورین یا مسین سرپوښ لوښے چې اخلي (اغرلي) اوږهٔ پـه کښې د خمبیـره کېـدلو دپـاره کښېښـودلے شي . (پېژنم) (پېجنم) پوهړه ښځه ډېره خمبیره ساتي ، د کلپۍ غاړه گنده ساتي) (متل)

**کلیے** :- (ک + ل + یَے)(اس ، مذ ، ج___پي) د کباپو تالے.

**کلت** :- (ک + ل + ت) یا (ک + لُ + تْ) (اس جم) یو قسم غله ده چې لکه د مسورو د دال پخه ولے شي.

**کلتور** :- (ک + ل + تو + ر)(فر ، ر ، اس ، مذ ، ج___ونه)(و___کلچر)

**ملي___**(م + ل + لي___) قومي کلتور ، قومي کلچر.

**کلثوم** :- (کُ + ل + ث + م)(ع ، صف)(۱) هغـه چې اننگي ئې لـه غوښـو ډک وي.غوښن اننگو واله.(۲) (مع) د حضورؐ د لور بي بي نوم.پوره نوم ام کلثوم دے.(۳) د زنانهٔ په نومونو کښې راځي.

**کلجو** :- (ک + ل + جو)(اس جم) د اوربشو یو قسم.

**کلچ** :- (ک + ل + چ)(اس ، مذ ، ج___ونه)(۱) د بوجۍ یو قسم دے.برکۍ. (۲) د خاورو د وړلو بوره.

**کلچ** :- (ک + ل + چ)(انگ ، اس ، مذ ، ج___ونه) د موټر یا لارۍ یوه پُرزه.

**کلچـر**:- (ک + ل + چ + ر)(انگ ، اس ، مـذ ، ج___ونـه)تهذیب او تمـدن ، ثقافت، فرهنگ.

**افغاني___**:- (ا + ف + غا + ني___) (ننگ ، پ تـر ، اس .مـذ)د پښـتنو ثقافت ، د پښتنو تهذیب او تمدن.

**کلچـه** :- (ک + ل + چَ)(ف ، اس ، مـو ، ج___چې)(۱) وړه شـان خمبیـره ، غـوړه ډوډۍ ، ټیکلۍ ، ورکـوټې روغنـۍ (خـوږه) ډوډۍ (۲) خطـائي ، کلځه ، څوکۍ (۳) بسکټ ، ښکلے ، هلک یا جینۍ.

**کلچی**:- (ک + ل + چ + ی)(صف)(۱) کلچې سره تعلق لرونکے ، کلچې تـه منسوب (۲) د کلچې په شکل ، غونډ.

**کلخوز** :- (کُ / کَ + ل + خو + ز)(اس ، مع) د ځاے او علاقې نوم.

**کل دار**:- (کَ + ل + دا + ر)(پ تر ، صف ، مذ ، مـو___ه)کـل لـرونکے ، هغـه سیکه چې د کوم بادشاه د سر نقش پرې شوے وي. (اصـلاً د اېـډورډ هفتم بادشاه د وخت روپۍ .چې یو طرف ته پرې د اېډورډ بادشاه د کلې نقش شوے وي.او بل طرف ته ئې خط وو.په دې وجه ددې دغې وخت روپۍ تـه بـه ئـې ,,کلداره،، یا کلداره روپۍ وې .د افغـانۍ روپۍ پـه مقابله کښې.(۲) پرزې واله ، (په دې معنې کښې د کل معنٰی د هندي ,, کل ،، په معنٰی دے.یعني مشین پُرزه.

**___ټوپـک** :- (___ټـو + پ + ک)(عـف ، تـر اس ، مـذ ، ج___ونـه / کـې) کوټري واله ټوپک،قولنگدار ټوپک .

**کلـداره** :- (کَ + ل + دا + رَ)(اس ، مـو ، ج___رې)د پېرنگیـانو د وخت هغـه پخوانۍ روپۍ په کومه چې به د بادشاه (اېډورډ هفتم) څهره جوړه شوې وه (اصلاً کله + داره) مجـازاً هغـه روپۍ چې پـه دغـه وخت کښـې پـه هندوستان کښې مروجه وه. (په مقابله کښې د ,, افغاني ،، ) (اوس نغدي روپۍ لـه استعماله وتې دي.او کاغذي روپۍ رواج لري. خو اوس هـم د ,, افغانـۍ ،، او پـه پاکستانـۍ روپۍ کښـې د تمیز دپاره پاکستانۍ روپۍ ته کلداره یا ,,کلداره ،، وئیلے شي)

**کلرک** :- (کَ + ل + ر + ک)(انگ ،اس ، مذ ، ج__ان) د دفتر منشي.د دفتر بابو

**کلس** :- (کَ + ل + س) ه ، اس ، مذ ) د گنبد دپاسه وړه شان مناره.

**کلغچکه**:- (کَ + ل + غ + چ + ک)(اس ، مو ، ج___کې) دیـوې مرغـۍ نـوم . کشکره،کیږکه هککه.

**کلغه** :- (کَ + ل + غ)(و___کرغه)

**کلغے**:- (کَ + ل + غے)(و___کلاغے)

**کلـف** :- (ع) تـور والـے ، د مـخ رنـگ تورېدنـه .پـه مـخ بانـدې داغونـه ښـکاره کېدنه ، د مخ داغ.

**کلفت** :- (کَ + ل + ف + ت)(ع ، اس ، مذ ، ج___ونه)تکلیف ، سختي ، مصیبت ، اسیت ناسیت.

**کلک** :- (ک + ل + ک)(صف ، مذ ، مو__ه)مضبوط ، محکم ، سخت.

**___ایمان** :- (___اي + ما + ن)(عـپ تر ، اس ، مـذ) پوخ ایمان ، محکم

ایمان ، پوخ یقین، پخه عقیده.

**ــــ پلک:** - (ــــ پ + ل + ک) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) „ پلک ،، د کلک سره د تاکید دپاره راځي. یعنې ډېر کلک ، ډېر محکم.

**ــــ روابط:** - (ــــ ر + وا + ب + ط) (عپ ، تر ، اس ، ج) مضبوط تعلقات ، محکم تعلقات.

**ــــ سترګی:** - (ــــ س + ت + ر + ګی) (صف ، مذ ، مو) (۱) بدلحاظه، چې د چا لحاظ نهٔ کوي (۲) بې حیا ، بې شرمه.

**ــــ سړې:** - (ــــ س + ړې) (پ تر ، مذ ، ج ــــ ړي) مضبوط سړے، د مضبوطې ارادې سړے. په خبره ټینګ پاتې کېدونکے سړے.

**ــــ واګې:** - (ــــ وا + ګې) (پ تر ، صف) کلکو واګو واله ، هغه اس وغېره چې مضبوطې واګو لاندې کار کوي. د خولې تریخ اس ، سخت خولے.

**په وچ ــــ زور:** - صرف طاقت سره ، فقط د طاقت په ذریعه.

**وچ ــــ:** - (و + چ ــــ) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ـــ ه) (۱) وچ (خشک) او مضبوط (۲) خالص ، بغېر د بل څهٔ ځیز د ملګرتیا یا ګډون.

**کلک:** - (ک + ل + ک) (ف ، اس ، مذ) هر هغه نل چې په مېنځ کښې خالي وي کهې ، مجازاً قلم ، کړکې ، غوزکے ، لیکاټې

**کلک:** - (ک + ل + ک) (۱) ترخ ، د ترخ جامه (۲) د پوزې قې (۳) د نائیانو نشتر

**کلکته:** - (ک + ل + ک + ت + تَ) (اس مع) (۱) د بهارت یو لوے ښهر (ښار) چې د مغربي بنګال دارالحکومت دے (۲) مجازاً ډېر لوے ځاے چې رسیدل ورته ګران وي.

**کلکټر:** - (ک + ل + ک + ت + ر) (انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) جمع کوونکے ، ټولوونکے ، پخوا د انګرېزانو او نتې دور کښې یوه عهده وه چې د خپلې علاقې مالیه، محصول وغېره به ئې وصولوهٔ. د ضلعې د مالیاتو لوے افسر.

**کلکل:** - (ک + ل + ک + ل) (اس ، مذ) خبرې ، ډېرې خبرې ، قائمقام ، ګفتګو ، شور غوغا ، بک بک ، شور زوږ

ځاے په ځاے چې ګورم زهٔ خوشحال ورته حېران یم
بلـه غـوغـا نشتـه همګي د عشق کلـکل دے (خوشحال)

**ــــ کول:** - شور غوغا کول ، ډېرې زیاتې خبرې کول. هر وخت خبرې کول. خبرې اترې کول.

**کلکنړ:** - (ک + ل + ک + ن + ړ) (و ــــ کالکنډي)

**کلکوالے:** - (ک + ل + ک + وا + لے) (اس ، مذ) مضبـوطوالے ، محکـم والے ، ټینګتیا.

**کلکول:** - (ک + ل + ک + و + ل) (مص) مضبوطول ، محکم کول ، ټینګول.

**پښې ــــ:** - (پ + ښې ــــ) پښې ټینګول ، همت کول ، همت یا پوره قوت سره مقابله کول.

**زړهٔ ــــ:** - (ز + ړ ــــ) زړهٔ مضبوطول ، زړهٔ محکم کول ، همت کول ، د همت او جرات نه کار اخېستل. حوصله کول.

**سترګې ــــ:** - (س + ت + ر + ګې ــــ) د سترګو نه حیا لرې کول. د بې شرمۍ نه کار اخېستل. ځان بد لحاظه کول.

**لاسونه ــــ:** - ((د چا) لا + سو + ن ــــ) د چا پشتي کول ، حمایت کول ، د کوم کار دپاره امداد کول.

**کلکونه:** - (ک + ل + ک + و + ن) (حمص) مضبوطونه ، محکم کونه ، ټینګونه.

**کلکوونکے:** - (ک + ل + ک + وو + ن + کے) (اس ، فا ، مذ ، ج ــــ کي) مضبوطوونکے ، محکم کوونکے ، ټینګوونکے.

**کلکه:** - (ک + ل + کَ) (صف ، مو ، ج ــــ کې) مضبوطه ، محکمه ، سخته ، ټینګه

**ــــ خبره:** - (ــــ خ + ب + رَ) (پ ، تر ، اس ، مو ، ج ــــ کلکې خبرې) مضبوطه خبره ، نهٔ بدلېدونکې خبره ، پخه خبره.

**ــــ ښځه:** - (ــــ خ / ش + (د) زَ) (اس ، مو ، ج ــــ ښځې) د „ کلک سړے ،، تانیث دے.

**ــــ عقیده:** - (ــــ ع + قي + دَ) (عپ ، تر ، اس ، مو ، ج ــــ دې) مضبوطه عقیده ، پخه عقیده ، پوخ اعتقاد ، ټینګه عقیده.

**ــــ سترګې:** - (ــــ س + ت + ر + ګې) (پ تر ، اس ، مو ، ج) بې لحاظه سترګې ، بې شرمه سترګې ، بې حیا سترګې

**وچې ــــ:** - (و + چې ــــ)

**اوچې ــــ:** - (او + چې ــــ) خالصې، بې ګډونه ،نغدې ،عموماً „روپو،، سره راځي. لکه وچې کلکې دوه زره روپۍ مې ترې واخستې.

**کلکېدل:** - (ک + ل + کې + د + ل) (مص) مضبوطېدل ، محکم کېدل ، ټینګېدل.

**په خبره:** - (پ + خ + ب + رَ ــــ) په خپله خبره ټینګ ودرېدل ، د خپلې خبرې نه بله نهٔ کول. خپله خبره بدلول ، په خبره ښتل.

**کلکېدنه:** - (ک + ل + کې + د + نَ) (حمص) مضبوطېدنه ، محکم کېدنه ، ټینګېدنه.

**کلکېدونکے:** - (ک + ل + کې + دو + ن + کے) (اس ، ه ، مذ ، ج ــــ کي) مضبوطېدونکے ، محکم کېدونکے ، ټینګېدونکے (په خبره) ښتونکے.

**کلکېدهٔ:** - (ک + ل + کې + د) (و ــــ کلکېدنه)

**کلکین:** - (ک + ل + کي + ن) (ت ، اس ، مذ) کړکۍ ، بارۍ و دریچه.

**کلکے:** - (ک + ل + کے) (اس ، مذ ، ج ــــ کي) کپرۍ ، کوپرۍ.

**کلګې:** - (ک + ل + ګې) (اس ، مو ، ج) سپړې.

**ــــ پلټل، په سر کښې:** - په سر کښې سپړې لټول.

**کلل:** - (ک + ل + ل) (مص) پیمائش کول ، کچ کول. د دوو ځایونو تر مېنځه د فاصلې اندازه اخستل.

**کللتوب:** - (ک + ل + ل + تو + ب) (اس ، مذ) د دوو ځایونو تر مېنځه فاصلې تعین یا اندازه ، کچوالے.

**کللے:** - (ک + ل + لے) (اس ، مف ، مذ ، ج ــــ لي) کچ کړے ، پیمائش کړے ، (د کچ) اندازه شوے.

**کلمات:** - (ک + ل + ما + ت) (ع ، اس ، ج) لفظونه ، الفاظ ، جملې.

**دخیل ــــ:** - (د + خي + ل ــــ) هغه الفاظ کوم چې د کومې بلې ژبې نه د چا ژبې کښې داخل شوي وي او استعمالېږي. بهرانې الفاظ د غېرو ژبو الفاظ کوم چې یوه ژبه کښې استعمالېږي. او د دغې ژبې برخه ګرځېدلې وي.

**کلماغ:** - (ک + ل + ما + غ) (اس ، مذ ، مو ـــ ه) په ناز و ادا قدمونه اخستونکے. په کېځ مکېځ تلونکے ، خرامانه خرامانه تلونکے.

**کلمتېن:** - (ک + ل + م + تې + ن) (ع ، اس ، تثنیه) دوه کلمې ، یعنې د کلمه طیبه دواړه برخې ، لااله الاالله او محمد رسول الله.

**کلمک:** - (ک + ل + م + ک) (اس ، جم) د انګورو یوه خاص قندهارے قسم چې سپین او ډېر نازک وي.

**کلمو:** - (ک + ل + مو) د کُلمه (کولمه) اضافي شکل.

**په ــــ کښې درد کېدل:** - چا ته مجازاً چا سره ډېر سخت بغض یا حسد پېدا کېدل. ډېره غصه کېدل چاته.

**کلمه:** - (ک + ل / لي + مَ) (ع ، اس ، مو ، ج ــــ مې) (۱) لفظ ، خبره (۲) کلمه شریف ، یعنې لااله الاالله محمد رسول الله. چې د اسلام یو رکن دے.

(۳) یو بې معني وړه کلمه ، ګړ ، کړت ، (۴) (ګرائمر) د ,, حرف ،، په معنیٰ کښې هم استعمالېږي . لکه کلمه تاسف .

**ـــالله:** - (ــــ (ت + ل) لا + (ه) (ع تر ، اس ، مذ) (۱) د خدائے پاک کلمه ، لااله الاالله (۲) حضرت عیسیٰ علیه السلام .

**ـــالحق:** - (ــــ (ت + ل) + ح + ق) (ع تر ، اس ، مذ) د حق کلمه ، رښتیا خبره .

**ـــتاسف:** - (ــــت + ا + س + سُ +ف) (عف تر ، اس ، مؤ) هغه لفظ کوم چې د افسوس په وخت د خولې نه ووځي . لکه : اُف ، وئ .

**ـــتعجب:** - (ــــت+ ع + ج + جُ + ب) (عف ، تر ، اس ، مذ) هغه لفظ کوم چې د تعجب او حیرانتیا په وخت د خولې نه ووځي . لکه :- وئ ، اوه ، او هو !

**ـــــتکبیر:** - (ــ (ئې) + ت + ک + بي + ر) (عف تر ، اس ، مو) د تکبیر کلمه ، الله اکبر .

**ـــــتمجید:** - (ــــ (ئې) ت + م + جي + د) (عف تر ، اس ، مو) د خدائے پاک د لوئے والي او د لوئے شان کلمه . سبحان الله والحمد لله لااله الا الله والله اکبر ولاحول ولاقوة الابالله العلي العظیم .

**ـــــتوحید:** - (ــ (ئې) تو + حي + د) (عف تر ، اس ، مو) هغه کلمه چې په کښې د خدائے پاک د یو والي ذکر دے . لااله الاالله وحده لاشریک له ، له الملک و له الحمد ..... الخ

**ـــشهادت:** - (ــــ (ئې) ش + ها + د + ت) (عف ، تر ، اس ، مو) د شهادت کلمه : الشهدان لااله الاالله واشهدان محمداً عبده و رسوله .

**ـــــطیبه:** - (ـــ (ئې) ط + ئ + ي + ب) (عف ، تر اس ، مو) پاکه کلمه : لا اله الاالله محمد رسول الله .

**ـــــکفر:** - (ـــ (ئې) کُ / کو+ ف + ر) (عف ، تر ، اس ، مو) د کفر کلمه یا خبره . هغه لفظ یا الفاظ چې د خولې نه په یستلو ئې ویونکے کافر کېږي .

**ـــــګو:** - (ــــــګو) (عف ، تر صف ، مذ ، مو ـــ ه) کلمه ویونکے ، مسلمان ، مؤمن .

**ګلمه** :- (کُ + ل / لي+ مَ) (اس ، مو ، ج ـــ مې) روده ، د ګېډې سره ملحقه هغه اوږده نرمه پیچیده نالۍ چې خوراک په کښې تېرېږي او د بدن جُز ګرځي .

**ـــــغوټه کېدل، چا سره :** - (۱) چا سره کلک تړون ، تعلق یا دوستي وغېره پیدا کېدل . (۲) چا سره هر وخت نښتې اوسېدل یعني نۀ ترې جدا کېدل .

**ـــــوتنه :** - (ــــــو + ت + نَ) (پ تر ، اس ، مو) یوه بیماري ده . چې د مریض قلمې بهر ته ووځي .

**د شېطان ـــــ** :- (د + شې + طا + ن) (عپ ، تر ، اس ، مو) مجازاً ډېر اوږد څیز

**غټه ـــــ** :- (غ + ټ ـــــ) (اس مو ، ج ، غټې کلمې) د کلمو هغه برخه کومه چې لنډه او غټه وي .

**کلمې** :- (کُ / کو + ل + مې) د ,, کلمه ،، جمع ده .

**ـــــ اباسل** :- په چاړهٔ وغېره داسې زخمي کول چې کلمې ئې بهر ته را ووځي . وژل (وجل) .

**ـــــشنې کېدل ، د خندا نه** :- بې کچه ډېر خاندل ، ډېر زیات خندل .

**ـــــوباسل / اوباسل** :- په ګېډه زخمي کول . چې کلمې ئې ترې بهر ته راووځي . مجازاً مړ کول . (عموماً د تنبیه په طور وئیلے شي . لکه :- کلمې به دې وباسم) .

**کلن** :- (ک + ل + ن) (صف ، مذ ، مو - ه) د کالو ، د کلونو لکه : پینځ کلن .

**کلنج** :- (ک + ل + ن + ج) د ,, قلنج ،، بدل شکل دے (و ـــ قلنج یا قولنج)

**کلنجــار** :- (ک + ل + ن + جـا + ر) (ف ، اس ، مـذ) کـوني کبـر ، خرچنـګ ، کنجپور .

**کلنجو** :- (ک + ل + ن + ج + ر) (صف ، مذ ، مو ــــ ه) د باز یو حالت

د زرکو غوښې ښې دي په کړېز کښې
یـا هـاله چې بـاز بابنه شي کلنجره (خوشحال)

**کلند** :- (ک + ل + ن + د) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) کدالۍ ، ګینتري .

**کلنزېدل** :- (ک + ل + ن + زې + د + ل) (مص) ښوئېدلو سره درز خوړل .

**کلنګ** :- (ک + ل + ن + ګ) (اس ، مذ) د یوې لوبې نوم دے .

**کلنګ** :- (ک + ل + ن + ګ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د ,, قلنګ ،، بدل شکل دے . (۱) ټیکس (۲) هغه رقم چې کوم زورور سړے یا ملنګ د څینو کسانو نه مقرره وخت وصولوي . (۳) (ق) هغه رقم (یا جنس) کومه چې د شته منو خلکو نه وصولولے او په غریبانانو بانديې وېشلے شي . (۴) (ق) هغه څیز کوم چې یوه ناوې د مور او پلار د کوره د خاوند کره ځان سره راوړي او بیا ئې د خاوند په خپلو خپلوانو وېشي . (لکه رومال ، تولیه وغېره) .

**کلنګ** :- (ک + ل + ن + ګ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) جهیز ، داج ، جوړه

څو په خپـله دې تـلاش او تدبیر نۀ وي
پلار او مور به دې ساز نۀ کا دا کلنګ (پیر محمد)

**کلنګ** :- (ک + ل + ن + ګ) (ف ، اس ، مذ ، ج ــ ان) زانې ، قاز ، قلنګ

**کلنګړه** :- (ک + ل + ن + ګ + ړَ) (هـ ، اس ، مو) د یو راګ نوم دے .

**کلنګي** :- (ک + ل + ن + ګي) (صف) (۱) د چرګانو یو قسم ، چې د نورو چرګانو نه غټوي . او لوئې لوئې پښې لري . قولنګي ، کوړي چرګ ، خلک ئې د جنګونو دپاره ساتي (۲) مذاقاً اوږد پښو واله بنیادم ، دنګ لوړ سړے .

**کلنی** :- (ک + ل + ن + ی) (صرف مو) د ,, کلنے ،، تانیث دے

د کوم وخت ، د کومې زمانې . لکه : تۀ دا کلنی خبره کوې ؟

**کلنی** :- (ک + ل + ن + ی) (اس ، صف ، مو) د ,, کلنے ،، تانیث دے . د کال ، کال سره متعلق .

**ـــبودجه** :- (ــــ بو + د + جَ) (پ تر اس ، مو ، ج ـــ جې) د کال بجټ

**کلنې** :- (ک + ل + نې) (حرف) د ,, کله ،، سره تعلق لري . یعني د کوم وخت ، د کومې زمانې .

**کلنے** :- (ک + ل + نے) (اس ، صف ، مذ ، ج ــــ نې) (۱) کال سره تعلق لرونکے ، کال ته منسوب (۲) د کالو ، د کالونو ، عموماً د عمر په حقله وئیلے شي . لکه :- دا هلک څو کلنے دے ؟

**کلو** :- (ک + لو) د ,, کلي ،، جمع اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل . لکه : د کلو اوسېدونکي .

**کلو** :- (ک + لو) (اس ، مذ) یو قسم مرغۍ ده . (ف : کله خورک)

**کلواڅه** :- (ک + ل + وا + (ت) سَ) (اس ، مو ، ج ــــ څې) سربها ، هغه رقم کوم چې د مقتول وارثان د قاتل نه اخلي . خون بها .

**کلواړه** :- (ک + ل + وا + ړَ) (اس ، مو ، ج ـــ ړې) (و ـــ کرواړه)

دغه ګرد به دې سپېرهٔ د حیا مخ کا
چې د نس په زبرمه تل کوې کلواړې (حسېن)

**کلوچ** :- (ک + لو + چ) (اس ، مذ) (۱) بد مخ والے ، بد رنګ مخے تـور مخے (۲) غـونجے ، غـونج ، ګـرونجے ګـرونجے (۳) څڅېـدلې ډوډۍ ، هغه ډوډۍ چې په تنور کښې پرېوځي او غونجې غونجې شي .

**کلوچول** :- (ک + لو + چ + و + ل) (مص) (۱) ګرونجے ګرونجے کول . ګونجیلک

کول ، کوتول (۲) راغونډول ، رانغښتل (۳) لوے وغېره چپړې کول.

**کلوچے:** - (ک + لـو + چے) اس ، مـذ ، ج ــــ چي) څرخـه چې پـرې تارونـه تاووي.

**کلوخ:** - (ک + لو + خ) (اس ، مذ) لوټه.

**ــــانداز:** - (ــــا + ن + دا + ز) (ف تر ، اس ، مذ) د قلا پـه ديـوال کښـې هغـه سورے چې پخوا به د دې سوري نه دښمن په لوټو کاڼو ويشتۀ. (کلوخ لوټې ته وائي) خو اوس ترې د ټوپکو ډزې کولے شي - مورچه.

**کلوخته:** - (ک + لو + خ / ش + تَ) (اس ، مو) د وېښتو وغېره يو څو تارونه.

**کلور:** - (ک + لو + ر) ېډن (افريدي) شول (قندهار) په نخښه کول.

**کلوروفام:** - (ک + لـو + رو/ را + فـا + ر + م) (انګ اس ، مـذ) د يـو دوايـۍ نـوم دے چې بويولو سره ئې سړے بېهوشه شي. د بې سوده کولو دوائي.

**کلوش:** - (ک + لو + ش) (و ــــ کلوشے)

**کلوشه:** - (ک + لو + شَ) (و ــــ کلوښه)

**کلوشي:** - (ک + لو + شي) (اس ، مو ، ج) يو قسم پيـزار دے چې د خټـو وغېره نه د بچ کولو دپاره د بل پيزار دپاسه اغوستے شي. کلوش.

**کلوښته:** - (اس ، مو) د کاکلو يا د زلو د وېښتو څۀ برخه (موټے).

**کلوښته:** - (ک + ک + لو + خ / ش + تَ) (صف ، مو) (۱) غنچه غنچه وېښتۀ. ګلګوټې وېښتۀ. (۲) يو قسم تازيانه ، هنټر ، کروړه (۳) وچ وابـۀ ، چې پـه ژمي (جمي) کښې څاروؤ له ورکولے شي. تموره ، پولۍ ، بيده ، بـوړے (۴) دومره قدر سپنسي چې لړ شان پړے يا غټ مزے ترې جوړېدلے شي (۵) زلفې

تـورو زلـفو دې خـوشبويه کړۀ ملکونه

دواړه کوښتې دې د مښکو چينې چينې (خواجه محمد)

**کلوښتې:** - (ک + لو + خ / ش + تې) (اس ، مو ، ج) متروکې ، تازيانې.

**کلول:** - (ک + ل + و + ل) (مص) خرئيل ، خرېئېل وېښتۀ په چاړۀ (پـاکۍ) سره صفا کول.

**کلول:** - (ک + لو + ل) (اس ، جم) يو قسم بوټے دے - وړې وړې دانې کـوي - دغه بوټي د څاروؤ خوراک دې کړاګ.

زۀ د کـــر پـــه وخت غـنم کـــرم حـيران شم

چې په درمن کښې شي ماته سرۀ کلول پيښ (علي خان)

**کلولو:** - (ک + لو + لو) (اس ، مذ) يـو قسم حشـره ده (چيـنجے ميـنجے) چې اکثره د نرمې خاورې تر لاندې وي. شبطان خوټ.

**کلوله:** - (ک + لو + ل) (ف ، اس ، مو ، ج ــــ لې) هـر غونـډ مونـډ څيـز ، ګرد ، ګرد ، ګردے ، غټـړے ، غونډے.

**کلولي:** - (ک + ل + و + لي) (پ تر ، اس ، مـو) د يـو کلـي د اوسـېدونکو پـه خپله کښې معاشرتي تعلقات ، د يو کلي د خلکو د يو بـل پـه غـم ښـادۍ کښې شريکېدنه. کلي کلوېغي.

**کلونکے:** - (ک + لو + ن + کے) (اس ، فـا ، مـذ ، ج ــــ کي) کچ کوونکے ، د اوږدوالي اندازه ، اغشتونکے ، پيمائش کوونکے.

**کلونه:** - (ک + لو + ن) د ,, کال ،، جمع ده.

**کلوو:** - (ک + ل + وو) (اس ، جم) کارۀ ، باديان.

**کله:** - (ک + لَ) (حرف) (۱) د تپوس تورے دے. د وخت په حقله د پوښتنې په معنې کښې راځي څۀ وخت ، په کوم وخت کښې ، پـه کومـه زمانـه کښـې وغېره. (۲) کله کله د استفهام انکاريه په طور راځي. يعني مقصد سوال يا تپوس نۀ وي. بلکه د څۀ څيز يا کار انکار وي.

چې کنوز جمع کوي مل د قارون دي

د قـارون قرين به کله پاک نهاد شي (حافظ)

**هر ــــ:** - (هـ + ر ــــ) (اس ، ظر) (۱) هر وخت ، تـل ، شـامدام ، همېش (۲) څۀ وخت ، په کوم وخت ، لکه : هر کله چې تۀ دلته راشې.

**کله:** - (ک + ل) (اس ، ظر) (۱) ځينې وخت ، ګاهے ، لکـه : کلـه وخاندم بيا وژاړم (جاړم) (۲) په هېڅ وخت ، پـه هېڅ وخت هم لکه : هغـه بـه دا خبره کله هم ونۀ مني.

**هر ــــ راشي:** - (ــــ را + شي) (جمله) د خبـر مقدم جملـه ده . د چا مېلمه په راتلو وئيلې شي. مطلب دا چې تۀ دې تل تل راځې. يا تـۀ تل تل راځه. پخېره راغلې.

**هېڅ ــــ:** - (هـ / هـ + (ت) س ــــ) (اس ، ظر) په هېڅ وخت کښې چېرې هم ، هېچېرې ، هېڅ چېرې (عموماً د نفي په طور استعمالېږي ، لکـه : زۀ هېڅ کله هم داسې ونۀ کړم يا داسې هېڅ کله نۀ شي کېدلے.

**کله:** - (ک + لَ) (اس ، مـذ ، ج ــــ لې) (۱) سـر ، کپـرۍ ، د سـر کـوپړۍ (۲) د حلال کړي ګډ وغېره سر.

**کله پنډۍ:** - (ک + ل + پ + ن + ډ + ی) (اس ، مو) د يو مرض نوم دے . بغـوټې . ټنډرغومبرے ، غونډر بوزے.

**کله غوچک:** - (ک + ل + غو + چ + ک) (اس ، مو) د انګورو يو قسم.

**کلهم:** - (ک + ل هـ + م) (ع ، اس ، مذ ، مو ــــ ه) د عربـۍ د کلهم بـدل شـکل دے. ټول تمام ، درست ، همه ، ګړد (خو په دې کښې مبالغه ده).

**کلي:** - (ک + لي) (اس ، ج) (۱) د ,, کلـے ،، جمع ده . (۲) د ,, کلـے ،، اضـافي او مجروري وغېره (متغير) شکل.

**ــــ کول:** - دروازې ته لرګينه جرندګۍ لګول. دروازه قلف کول.

**ــــ وال:** - (ــــ وا + ل) (پ تر ، اس ، صف ، مذ ، ج ــــ ان) (۱) د کلي اوسـېدونکے ، د بانډې اوسېدونکے ، باندېځے (۲) ساده ، چې د ښهريو په چالاکو وغېره نۀ پوهېږي.

**ــــ واله:** - (ــــ وا + لَ) (پ تر+اس،صف،مو،ج ــ لې/ لانې) د ,, کلي وال ،، تانيث دے.

**ــــ واله:** - (ــــ وا + لَ) (پ تر ، صف ، مذ) د يو کلي اوسېدونکي ته د مخاطبې په وخت وئيلے شي. لکه : راځه کلي واله ! دلته کښېنه.

**د (له) ــــ وتل:** - کلے پرېښودل ، د کلي نه کډه کول. لکـه : د کليـه ووځـه خو د نرخه مه ووځه. (متل)

**کلي:** - (ک + لي) (اس ، ج) يو لفظ دے . چې هلکان د پټ پټوني په لوبـه کښې په هغه وخت کښـې د خولې وباسي څه وخت چې هغوي دغـه سترګې پټې هلک د شانه ګزار ورکړي . دې عمـل تـه هـم ,,کلـي ،، وائي.

**کلي:** - (ک + لي) (اس ، مو) چابي ، کنجي ، نوسه.

**کلي:** - (ک / کي + لي) (اس ، مـو ، ج ــــ ګانې / انې) (۱) کنجي ، چـابي ، کليد (۲) بټن ، پيچ.

**د برق د انتقال ــــ:** - د بجلۍ بټن.

**کلي:** - (ک + ل + لي) (عف ، تر ، صف) ټول ، همه ، مکمـل طـور سـره ، ټـول ، سر تر سره ، په پوره ډول. (د جزۍ په مقابله کښې).

هغه خلکو نه چې تراځۀ دي د هجران په زحمت

کلي خـواړۀ پـرې رقوم زهر شـــو حلوا به نۀ شي (حافظ)

**ــــ اعتماد:** - (ــــ ا + (ع) + ت + مـا + د) پـوره پـوره اعتمـاد ، مکمـل اعتماد پوره اعتماد.

**ــــ طور سره:** - مکمل طور سره ، ټول ، همه ، کُلاً په کلي ډول.

**په ــــ ډول (سره):** - مکمل طور سره ، په بشپړه ډول.

**کلۍ:** - (ک + ل + ی) (اس ، مـو) د لولـو هغـه ګوتنـه چې سر ئې سـولولے

شوے وي.

**کلي:** - (ک + ل + ی) (اس ، مو) د يو مرغۍ نوم دے ـ چې په سر څونډے لري. سپېر کنډه ، ټوپازن.

**کلي:** - (ک + ل + ی) (اس ، مو) يو اغزن (ازغن) بوټے دے چې اغزي ئې (ازغي) ډېر سخت او تېرۀ وي ـ ډانډۍ ئې اوږدۀ وي ـ عموماً نمر خاتۀ طرف ته کارۀ وي.

**کلي:** - (ک + ل + ی) (هـ ، اس ، مو) غوټۍ ، د ګل هغه حالت چې لا سپړدے شوے نۀ وي.

**کلي:** - (ک + ل + ی) (هـ ، اس ، مو) (۱) غوټۍ ، شګوفه (۲) د خټکي يا د هندوانې يوه ترازه

يـو اب يخ شي هم ړلی
يو ګل ګل شي هم کلی (ارزاني)

**کلے:** - (ک + لے) (اس ، مذ ، جـــ لي) (۱) وړه ابادي ، بانډه (د ښهر ، ښهرګي په مقابله کښې) (۲) د کلي اوسېدونکے.

**ـــ کلوغے:** - (ـــ ک + ل + و + غے) (پ تر ، اس ، مذ ، جـــ غي) د کلي په خپله کښې په غم ښادۍ وغېره کښې يو بل سره شريکېدنه.

**ـــ کور:** - (ـــ کو + ر) (پ تر ، مذ) (۱) د کلي د رواج او دود دستور مطابق يو بل سره تعلقات ـ په غم ښادۍ کښې شريکېدنه ـ کلے کلوغے. (۲) چم ګاونډ ، کور کلے.

**ـــ کور کول:** - د کلي او د خپلولۍ د دستور او رواج مطابق چا سره تعلقات ساتل ـ په غم ښادۍ کښې شريکېدل.

**کور ـــ:** - (کو + ر ـــ) (و ـــ کلے کور)

**کلے:** - (ک + لے) (اس ، مذ ، جـ کلي) هغه ګډ يا غوا غواے کوم چې ښکر نۀ لري.

**کلے:** - (ک + لے) (ق ، اس ، صوت) د پټي يا د فصل نه د مرغو مارغانو د شړلو اواز ـ کش ، شي

**ـــ کول:** - د فصل وغېره نه مرغۍ مارغان شړل.

**کليات:** - (ک + کو + ل + يا + ت) (ع ، اس ، ج) (۱) د کلي جمع ده ـ (د جزئيات په مقابله کښې) (۲) د شاعر د ټول کلام مجموعه لکه : کليات خوشحال خان خټک (۳) حافظ الپوري د کل عالم يا جهان په معنیٰ کښې استعمال کړے دے ـ خو دا معنیٰ ئې عامه نۀ ده.

تـۀ صادق ؤ د مبدلې
په کليات وغوړېدلې

**کليبر:** - (ک + لي + ب + ر) (انګ ، مذ) (۱) د قطر اندازه (۲) د فکر ګنجائش ، ظرفيت ، اهليت.

**کليت:** - (ک + ل + لي + ي + ت) (ع ، اس ، مذ) تمام توب ، همه والے.

**کليةً:** - (ک + ل + ي + ت + ن) (ع ، تر ، تف) کلي طور سره ، مکمل طور سره ، ټول ، سراسر ، بېخي ، بالکل ، ګردسره.

**کلېجي:** - (ک + لې + ج + ی) (هـ ، پ ، تر ، اس ، مو) د کلېجه تصغير دے ـ په پښتو کښې ځينې وخت په مرکب ,, زما کليجي ،، کښې د ماشوم سره د ډېرې مينې د څرګندولو په موقع استعمالېږي.

**کلېچ:** - (ک + لې + چ) (اس ، مذ ، جـــ ونه) (۱) سوتلۍ ، سوتري ، څنۍ ، انځې ورته (۲) هغه مزے چې ډېر سخت غبنتلے شوے وي.

**کلېچول:** - (ک + لې + چ + و + ل) (مص) سوتلۍ وغېره ډېره کلکه کلکه غبنتل (چې ډېر تاو سره کلکه شي).

**کلېچونه:** - (ک + لې + چ + و + ن) (حمص) د سوتلۍ يا د پړي ډېر کلک کلک او راښکلے غبنتنه.

**کلېچونکے:** - (ک + لې + چې + وو + ن + کے) (اس ، مذ ، جـــ کي) مزے يا پړے سخت تاو سره غبنتونکے.

**کلېچېدل:** - (ک + لې + چې + د + ل) (مص) کلک کلک غبنتلے کېدل ـ سخت تاو سره غبنتلے کېدل.

**کلېچېدنه:** - (ک + لې + چې + د + نَ) (حمص) سخت تاو سره غبنتلے کېدنه (د پړي وغېره).

**کلي خېل:** - (ک + ل + لي + خې + ل) (اس ، مع) د دلدار خېلو څانګه ده.
(دلدارخېل < محمدخېل < کتيبه خېل < حسن خېل < ميتاخان خېل < کوکي خېل) افريدي دي.

**کلي خېل:** - (ک + لي + خې + ل) (اس مع) د علي شېرخېلو څانګه ـ شنواري دي.

**کلي خېل:** - (ک + ل + لي + خې + ل) (اس ، مع) د باچه ګئيو څانګه ده ـ (باچه ګئ تور < جاني خېل < ولي خېل <اتمان زئي <درويش خېل) وزير دي.

**کليد:** - (ک + لي + د) (ف ، اس ، مذ ، جـــ ونه) (۱) کنجي ، چابي ، کلی ، نوسه (۲) اشاريه ، انډيکس.

**کليدان:** - (ک + لي + دا + ن) (اس ، مذ ، جـــ ونه) د دروازې د بندولو د لرګي جرندګی.

**کلېدل:** - (ک + لې+د + ل) (مص) کل کېدل ، خرئيلے کېدل ـ خرئيلے کېدل.

**کليدي:** - (ک + لي + د ي) (ف ، تر ، صف) هغه چې د کليد (کنجۍ) کار ورکوي ـ پرانستونکے ، وضاحت کوونکے ـ (۲) بنيادي ، اهم

**ـــ عهده:** - (ـــ عُ + ه + د) بنيادي عهده ، اهمه عهده ـ هغه عهده چې ډېر اهم او بنيادي کار ئې په لاس کښې وي.

**کليز:** - (ک + لي + ز) (اس ، مذ ، جـــ ونه) مچۍ

**کليز:** - (ک + لي + ز) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) کال سره تعلق لرونکے (۲) د کال ، د کالونو لکه : لس کليز.

**کليزه:** - (ک + لي + زَ) (صف ، اس ، مو ، جـــ زې) (۱) د ,, کليز ،، تانيث دے (۲) د مړي د کال دستوره ، خېرخېرات ، (۳) د هرې اهمې واقعې کالنۍ دستوره.

**کليسا:** - (ک + لي + سا) (ف ، اس ، مو ، جـــ ګانې / وې) د عيسائيانو عبادتخانه ، ګرجا ، ګرجه.

**په ـــ کښې شاملېدل:** - د عيسائيانو په ډله کښې شاملېدل عيسائي کېدل.

**د ـــ اهل:** - (ـــ ا + هـ + ل) اهل کليسا ، د کليسا سره متعلق خلک.

**کليسائي:** - (ک + لي + سا + ئي) (صف) د کليسا سره متعلق ، کليسا ته منسوب ، د چرچ يا ګرجې متعلق.

**کلېش:** - (ک + لې + ش) (انګ ، اس ، مذ ، جـــ ونه) تصادم ، ټکره.

**کليشه:** - (ک + لي + شَ) (فر ، اس ، مو) بلاک ، د تصدير بلاک چې په فلز (دات) باندې د چاپ دپاره جوړولے شي.

**کليغے:** - (ک + لي + غے) (اس ، مذ ، جـــ غي) د غاټول (لاله) يو قسم دے ـ چې رنګ ئې زېړ وي.

**کليل:** - (ک + لي + ل) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) سست ، ستړے ، ستومانه.

**کليله:** - (ک + لي + لَ) (اس ، مع) د هغې ګيدړې نوم چې د ,, کليله او دمنه ،، قيصې يو اهم کردار دے ـ دا قصه په ډېرو ژبو (جبو) کښې ترجمه شوې ده په پښتو کښې ئې هم ترجمې شوې دي ـ چې د ټولو نه غوره ترجمه د افضل خان خټک ده چې ,, علم خانه دانش ،، نومېږي.

**کليله و دمنه:** - (اس ، مع) د يوې پخوانۍ قصې کردارونه.

کليله دمنه بـه څو کړي راشه ګوره
چې څۀ دُر مې درته تور کړه د کلامه (خوشحال)

**کلیم** :- (ک + لي + م) (۱) کلام کوونکے ، خبرې کوونکے (۲) د حضرت موسیٰ علیه السلام لقب ، چې خدا ے پاک سره ئې د کلام شرف موندلے وۀ۔

د بلعم سره چې مل عنایت نه وو
د کلیم په غلیمی لاړ شۀ لظې ته (حافظ)

(۳) حافظ الپوري کلیم ګو په معنٰی د کلیمه ګو استعمال کړے دے ۔ (غالباً د ضرورت شوي له کبله عام استعمال ئې درست نۀ دے)

کلیم ګو ازارېږي
د اتش له بندېدۀ (حافظ)

**ـــــالله** :- (ـــــ (م + ل) لا+ (ه) (ع تر ، اس مع) خدا ے پاک سره کلام (خبرې) کوونکے ۔د حضرت موسیٰ علیه السلام لقب دے ۔چې د طور په غرۀ کښې ورسره الله پاک کلام کړے وۀ۔

**کلیمه** :- (ک + لي + مَ (ه) (پ تر ، اس ، مو ، ج - مې) لا الـه الا الله محمد رسول الله

امیـد وار لــه شفـاعته د نبي یم
په اخلاص مې ئې وئیلې کلیمه ده (خواجه محمد بنګش)

**ـــــوئیل** :- په خولۀ کلمه توحید وئیل۔

که په خولۀ کلیمه وائي مومن نۀ دے
چې د زړۀ اعتــقــاد نــۀ لـري همراه (خ خ ټ)

**کلیمي** :- (ک + لي + مي) (عف تر ، اس ، مو) (۱) د کلیم سره تعلق لرونکے ، کلیم ته منسوب۔حضرت موسیٰ علیه السلام ته منسوب۔(۲) د حضرت موسیٰ [4] کار۔ د خدا ے پاک سره کلام کونه۔

**د ـــــ په ځا ے ګوته کښېښودل** :- کوم ځا ے چې کلمه لیکلے شي هلتـه ګوتـه کښېښودل۔چې د ګوتې لاندې پټه شي۔مجازاً حق پټول۔رښتیا خبره نۀ کول۔شف شف کول۔

**کلین** :- (ک + لي + ن) (اس ، مع) (۱) کال سره متعلق (۲) د کال مزدوري ۔تر کاله د کار کولو معاوضه۔

**کلینر** :- (ک + لي + ن + ر) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان)
(۱) صفا کوونکے (۲) د لارۍ ، بس وغېره هغـه مـلازم چې لارۍ ، بس وغېره صفا ساتي۔(۳) په لارۍ بس کښې ټکټونه ورکوونکے۔
(عوام ورته ,, کیلنډر ،، وائي)

**کلینک** :- (ک + لي + ن + ک) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) هغه اله چې د اور نه پرې ښیزونه باهر ته راوباسي۔چمټه (۲) انګ ، اسم ، مذ ، د ډاکټـــر د مریضانو د کتلو / معائنه کولو ځا ے چې دارو درمل ورته تجویز کوي۔

**کلینیکي** :- (ک + لي + ني + کي) (انګ ، پ تر ، صف) کلینک سره تعلق لرونکے ، کلینک ته منسوب۔

**کلیو** :- (ک + ل + یو) د ,, کلي ،، (جمع) اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل۔

**کلیوال** :- (ک + لي + وا + ل) (و ـــــ د ,, کلي ،، تر لاندې)۔

**کلیواله** :- (ک + لي + وا + ل) (و ـــــ د ,,کلي ،، تر لاندې)۔

**کلیوالي** :- (ک + لي + وا + لي) (و ـــــ د ,,کلي ،، تر لاندې)۔

**کلیه** :- (ک + ل + يَ) (ع ، صف) مکمل طور سره ، پوره۔

**ـــــاصول** :- هغه اصول ، چې مکمل طور سره په هره خبره حاوي کېږي۔

**ـــــنظرئي** :- (ـــــ ن + ظ + ري + ئي) (عف تر ، اس ، ج) هغـه نظرئې چې په هر څۀ حاوي وي۔

**کم** :- (ک + م) (فعل) د ,, وکړم ،، مخفف دے ۔لکه : څۀ وکم پیسې راځخه نشته۔

**کم** :- (ک + م) (حرف) د استفهام توری دے ۔په ګڼو ښیزونو کښې د کوم خاص ښیز (یا ښیزونو) وغېره په حقله د تپوس دپاره راځي ۔ عموماً ,, کوم ،، لیکلے شي۔

**ـــــکم** :- (ـــــک / ک + م) په ګڼو ښیزونو وغېره کښې د انتخاب په حقله د تپوس په موقع وئیلے شي۔کوام کوام

**ـــــوخت** :- (ـــــو + خ + ت) (پ تر ، د استفهام کلمه) څۀ وخت ، څۀ مال ، کوم وخت۔

**ـــــیو** :- (پ تر) استفهام ، په ګڼو کسانو یا ښیزونو کښې د یو خاص ښیز
په حقله د تپوس دپاره راځي۔څوک ، کوم یو لکه : په تاسو کښې کوم یو ما سره مقابله کوئ ؟

**د ـــــوخت نه / څخه** :- د څۀ وخت نه ، د کوم وخت نه۔

**کم** :- (ک + م) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) (۱) لږ ، قلیل (۲) وړوکے ، کمکے ، ورکوټے۔

کم کوترے د لویو سپیو هنر اخلي
پېروي کـا کـــشران د مشرانو (خوشحال)

(۳) ادنٰی ، د لاندې درجې

**کم ـــــ** :- (ک + م ـــــ) (سابقه) د فارسي سابقه ده ۔د فارسي عربي او د پښتو الفاظو نه وړاندې راځي ۔او د کم والي ، لږوالي ، یا د نیشتوال معنې ورکوي۔

**ـــــاب** :- (ـــــ آ + ب) (فپ ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغـه زمکـه چې اوبۀ ئې لږې وي۔

**ـــــابي** :- (ـــــ آ + بي) (فپ تر ، اس ، مو) د اوبو لږوالے ، د اوبو کمے۔

**ـــــازار** :- (ـــــ آ + زا + ر) (ف تر ، صف ، مذ / مو) کم ازار رسوونکے مجازاً ازار نۀ رسوونکے ۔چاته (له) تکیف نۀ ورکوونکے ۔(د فارسي د مذکر صیغه ,, کم ازار ،، هم استعمالېږي۔خو کمه کوزه)

**ـــــاز کم** :- (ـــــ ا + ز + ک + م) (ف تر ، تف) (و ـــــ کم نه کم)

**ـــــاستعداد** :- (ـــــ ا+ س + ت+ (ع) دا+د) (عف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) لږ استعداد واله ، کم اهلیت لرونکے۔

**ـــــاستعمال** :- (ـــــ ا + س + ت+ (ع) + ما+ ل) (عف تر ، صف ،مذ ، مو ـــــ ه) لږ استعمالېدونکے ، کم په استعمال کښې راتلونکے ۔لږ پکارېدونکے۔

**ـــــاصل** :- (ـــــ ا + ص + ل) (عف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغه چې اصل نسب ئې د کمې درجې وي۔بد اصلي ، نیچ ، رزاله ، کمینه۔

**ـــــاوربدل** :- کوڼ ,, بودل ،، په غوږونو دروند ,,بودل،،

**ـــــبخت** :- (ـــــ ب + خ + ت) (عف ، تر ، صف اس مذ ، ج ــ ان) (۱) کم بخت واله ، کم نصیبے هغه چې بخت یا نصیب ئې ښۀ نۀ وي ، بدبخت ، بدنصیبے ، بد مرغه (۲) د زورنې او د تنبیه دپاره هم وئیلے شي۔ لکه :- کم بخته ! دا دې څۀ وکړۀ؟۔

**ـــــبختي** :- (ـــــ ب + خ + تي) (فپ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ تي) (۱) کم نصیبي ، بدقسمتي ، د قسمت خرابي ، (۲) شامت ، بـده ورځ (۳) مصیبت ، افت ، بلا

**ـــــبختي راتلل** :- بد قسمتي راتلل ، قسمت خرابېدل بده ورځ راتلل ، شامت راتلل۔(۲) تکلیف یا مصیبت راتلل۔

**ـــــبضاعت** :- (ـــــ ب + ضا + ع + ت) (عف ، تر ، صف مذ ، مو ـــــ ه)
(۱) کمې پنګې واله ، لږې پنګې واله هغه چې مال ورځخه نۀ وي ۔(۲) کم حیثیته ، د معمولي حېثیت۔

**ـــــبها** :- (ـــــ ب + ها) (ف تر ، صف ، مذ ، مو) د کم قیمت ، ارزان بیعه۔

**ـــــــبها کول** : –کم قیمته کول ، ارزانول

کــه دې زړهٔ لري بها

ځان به نهٔ کړې کم بها (خوشحال)

**ـــــپیدا** : –(ـــپې+دا)(ف تر ، صف) هغه څیز چې کم یا نهٔ پیدا کېږي. کمیاب.

**ـــــــتر کمه** : –(ــــت+ر+ک+م)(و ـــــ کم نه کم)

**ــــــــتواني** : –کم حېثیت ، کم طاقت

ســل عېبه وي پـــــه دنیادار کښې نهٔ ښکارېږي

عېب زماښکاره دےکل علت مې کم تواني شوه (حافظ)

**ـــــــتوب** : –(ــــــتو+ب)

**ـــــتیا** : –(ـــــت+یا)(اس ، مذ) کموالے ، کمے ، کمي ، لږوالے.

**ــــــجائیداد** : –(ـــجا+ئې+دا+د)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه)

کم جائیداد واله ، هغه کس چې پټےپوله یا کور لورونه وغېره ډېر نهٔ لري، کم حېثیته.

**ـــــجائیدادي** : –(ـــجا+ئې+دا+دي)(اس ، مو)د جائیداد کم والے ، د دوتر لږوالے.

**ـــــجرات** : –(ـــــج+ر+رَ+ت)(فپ ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه)

هغه کس چې جرات په کښې نهٔ وي. بې زړهٔ ، کم همته ، ویرندوکے.

**ــــجراتي** : –(ـــــج+ر+رَ+تي)(فپ ، تر ، اس ، مو)د جرات کموالے ، د جرات نیشتیا ، بې زړهٔ توب ، کم همتي ، لکه : کم جراتي لـه ځانه لرې کول

**ــــجنسه** : –(ـــج+ن+سَ)(فپ تر ، صف)هغه څیز چې جنس ئې کم موندے شي.

**ــــحجمه** : –(ــــح+ج+مَ)(فپ تر ، صف)هغه څیز چې حج (اوږدوالے ، غټ والے او پلن والے) ئې کم وي.

**ــــحوصلگي** : –(ـــــحو+ص+ل+گي)(فپ تر اس ، مو) حوصـله لـږه لرنه ، حوصله نهٔ لرنه. بې همتي.

**ـــــحوصـله** : –(ـــحو+ص/ص لَ)(ف تـر ، صف ، مـذ ، مـو)(۱) د لـږې حوصلې واله ، کم همته ، بې همته ، بې زړهٔ (۲) کم ظرفه.

**ــــحېثیتـه** : –(ــــحې+ثي+ي+تَ)(عف تـر ، صف ، مـذ ، مـو)

(۱) د معمـولي حېثیت خاونـد ، کـم بضـاعـته ، د لـږې پنگـې خاوند .(۲) معمولي ، کمینه ، نیچ ، سفله.

**ـــــخرڅ** : –(ـــــخ+ر+(ت)س)(فپ تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه)

کم خرڅ کوونکے ، کفایت شعار.

**ـــخرڅ بالانشین** : –(ـــبا+لا+ن+شي+ن) (جمله)د فارسـي د جملې کم خرڅ بالانشین ترجمه ده .داسې کار یا څیز چې خرڅ پرې کم راځي. خو نمائش ئې ډېر وي.

**ـــخرڅه** : –(ـــــخ+ر+(ت)س)(فپ تر ، اس مـو / مذ)(۱) کم خرڅ کوونکے ، کفایت شعار (۲) هغه کار چې خرڅ پرې لږ راځي.

**ـــــخطا** : –(ـــــخ+طا) نهٔ خطا کېدونکے ، ډېر کم خطا کېدونکے.

بـــل په غشي کم خطا وو

د ښکار مینه وه پرې زوره (خوشحال)

**ـــــخواب** : –(ـــــخ+وا+ب)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه)

کم خوبه ، هغه چې خوب نهٔ ورځي.

**ـــــخوبي** : –(ـــــخو+بي) د خوب کم والے ، بې خوبي ، د خوب کمے ، لکه :- د کم خوبۍ مرض.

**ــــخور** : –(ـــخو+ر)(ف تر ، صف ، مذ)کم خوراک کوونکے ، کم خوراکے.

**ـــــخوراک** : –(ـــــخو+را+ک)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه)

لږ خوراک کوونکے.

**ـــــخوراکه** : –(ـــــخو+را+کَ) (فپ تر ، صف ، مذ / مو)

هغه چې خوراک د معمول نه کم کوي کم خوراک کوونکے.

**ـــــخوراکي** : –(ـــــخُ/خو+را+کي)(فپ تر ، اس ، مو)

لږ خوراک کونه ، د معمول یا ضرورت نه کم خوراک کونه.

**ـــــخوره** : –(ـــــخ+و+ر)(فپ تر ، صف ، مو ، ج ـــــ رې)

د کم ,, خور ،، تانیث دے.

**ـــــخون** : –(ـــــخُو+ن) (فپ تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه)

د وینې کمے یا هغه چې په بدن کښې د وینې کمے وي.

**ـــــخوني** : –(ـــــخُو+ني)(اس ، مو)د وینې کموالے ، د وینې لږوالے.

**ـــــدلیل** : –سوچ فکر نهٔ لرونکے.

دا دې خـامـه اندېښنه ده کم دلیله

چې اغزي کړې په طمع د ریحان ئې (حافظ)

**ـــــذات** : –(ـــــذا+ت)(عف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغه چې د کمې درجې ذات ، اصل نسل سره تعلق لري. رذیل ، کمینه ، نیچ

سر تر پائې د خوشحال سره لباس کړې

خـدا ے دې واخـله لباسي دنیا کم ذاتې (خوشحال)

**ـــــذاتـي** : –(ـــــذا+تي)(فپ ، تـر ، اس ، مـو)کم اصـلي ، د ذات سپکوالے

**ـــــذهن** : –(ـــــذ+هـ+ن)(عف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه)

د کمزوري ذهن خاوند ، هغه چې یاداشت ئې کمزورے وي.

**ـــــرنگ** : –(ـــــر+ن+گ) (فپ تر ، مذ ، مو ـــــ ه) د تـت رنگـه واله ، پیکه رنگ واله.

**ــــرنگه رڼا** : –(ـــر+ن+گ+ر+ن+ړا+ن) تته رڼا.

**ــــرڼا** : –(ـــــر+ن+ړ+ن) د ,, کم روڼ ،، تانیث دے.

**ـــــروڼ** : –(ـــــرو+ن+ړ) (فپ تر ، صف ، مذ) کمـې رڼـا والـه ، تتې رڼا واله ، لږه رڼا لرونکے. کم روڼا لکه : کم روڼ ، څراغ.

**ـــــروڼا** : –(ـــــرو+ن+ړا+ن)(و ـــــ کم روڼ)

**ـــــزور** : –(ـــــزو+ر)(و ـــــ کمزورے)

**ـــــزورے** : –(ـــــزو+رے)(و ـــــ کمزورے)

**ـــــزوري** : –(ـــــزو+ري)(و ـــــ کمزوري)

**ـــــسخن** : –(ـــــسُ+خ+ن) (و ـــــ کم گو)

**ـــــسن** : –(ـــــس+ن)(و ـــــ کمسن)

**ـــــسني** : –(ـــــس+ني) (و ـــــ کمسني)

**ـــــشوکت** : –کم شان لرونکے ، د کمې درجې خاوند.

قدم تېر له خپله حده حماقت دے

کم شـوکت د لافې نهٔ وهي الاف ته (حافظ)

**ـــــطاقت** : –(ـــــطا+ق+ت) (و ـــــ کم طاقته)

**ـــــظرف** : –(ـــــظ+ر+ف)(عف ، تر ، صف ، مذ ، ج ـــــ ه)

(۱) هغـه چې لوښے ئې تنگ وي .تنگ زړے ، د لـږې حوصلې والـه . کمینه.(۲) هغه چې ډېر زر خپل احسان په چا زباد وي.

**ـــــظرفي** : –(ـــــظ+ر+في) (عف ، تر ، اس ، مو)

تنگ زړوالے ، کم حوصلگي ، کمینه توب.

**ـــــعقل** : –(ـــــع+ق+ل) (عف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغــه چې عقل ئې لږ وي. بې عقله ، بې وقوف ، نادان ، ناپوهه.

**ـــــعقلي** : –(ـــــع+ق+لي)(عف ، تر اس ، مـو)د عقـل کموالے ، بې عقلي ، بې وقوفي ، ناداني ، ناپوهي.

ـــــعمره : - (ـــــ عُ/عو + م + ر)(فپ ، صف ، مذ ، مو) د کم عمر ، کم سن ، وړوکے ، کچ.
ـــــعمري : - (ـــــ ع/عو + م + ري)(عف تر ، اس ، مو)د کم عمر ,, بودنه ،، . کم سني ،وړوکوالے ، کچني والے.
ـــــعيار : - (ـــــ ع + ي + يا + ر)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه)هغه څيز چې پوره کره نۀ وي.په کره والي کښې ئې کمے وي.کوټه.ګډون واله ، ناسره.

په دوکان د کم عيارو به کاسه شي
د حافظ وئيل کره نقواد نافق دي (حافظ)

ـــــعياري : - (ـــــ ع + ي + يا + ري) (ف تر ،. اس ، مو) په کره والي کښې کمے ، کوټه والے ، ناسره والے.
ـــــغوښے : - (ـــــ غ + و + ښے/شے)هغه حېوان چې په بدن کښې ئې غوښې کمې وي.مانده ، ډنګر.
ـــــفرصت : - (ـــــ ف + ر + ص + ت)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغه کس چې فرصت ورځخه نۀ وي ناوزګاره ، ډېر مصروف.
ـــــفرصته : - (ـــــ ف + ر + ص + ت) (فپ تر ، صف ، مذ/مو) هغه چې فرصت ورسره ډېر کم ، ناوزګاره.
ـــــفرصتي : - (ـــــ ف + ر + س + تي)(اس مو)د فرصت کمے ، د روزګار وخت ، هر وخت په کار کښې بوخت ,, بودنه ،، ناوزګارتيا.
ـــــفروش : - (ـــــ ف + رو + ش) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) کم خرڅوونکے ، په تول کښې کمے کوونکے.
ـــــفروشي : - (ـــــ ف + رو + شي)(ف تر ، اس ، مو) کم خرڅونه ، کم تلنه ، په تول کښې کمے کونه.
ـــــفکره : - (ـــــ ف/في + ک + ر)(صف ، مذ ، مو)کم فکر واله ، کمې توجه واله
ـــــفکري : - (ـــــ ف/في + ک + ري) (اس ، مو)د فکر توجه کمے ، غفلت لکه : د کم فکرۍ ځنې کار مه اخله.
ـــــفهم : - (ـــــ ف + ه + م) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) کم فهم واله ، کمې پوهې واله ، کم عقل ، ناپوهه.
ـــــفهمي : - (ـــــ ف + ه + مي) (ف تر ، اس ، مو)د پوهې کموالے ، کم پوهي ، کم عقلي ، ناپوهي ، ناداني.
ـــــقوت : - (ـــــ قو + و + ت)کمزورے ، کم قوت واله

اور بـه کانـدي پـورې په ابرو د باعزتو
رب دې باعزت نه کړي کمزورے کم قوت (حافظ)

ـــــقوته : - (ـــــ قو + و + ت)(فپ تر ، صف ، مذ/مو)کم قوت واله ، کمزورے
ـــــقيمت : - (ـــــ قي + م + ت) (و ـــــ کم قيمته)
ـــــقيمته : - (ـــــ قي + م + تَ) (عف تر ، صف ، مذ ، مو) هغه څيز چې بيعه ئې کمه وي.د کم قيمت واله ، ارزان.
ـــــکم : - (ـــــ ک + م) (ف تر ، تف)لږ لږ ، کم کوز
ـــــګفتاري : - (ـــــ ګ + ف + تا + ري)(ف تر ، اس ، مو) (و - کم ګوئي)
ـــــګڼل : -سپک ګڼل ، حقير ګڼل.
ـــــګو : - (ـــــ ګو)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ يه)کمې خبرې کوونکے ، هغه چې (په مجلس کښې) ډېرې لږې خبرې کوي.
ـــــګوے : - (ـــــ ګو + ي)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) کمې خبرې کوونکے ، خاموش طبع
ـــــګوئي : - (ـــــ ګو + ئي) (ف تر ، اس ، مو) لږې خبرې کونه ، کمې خبرې کونه.

ـــــله کمه : - (ـــــ لَ + ک + مَ)کم نه کم ، لږ نه لږ ، لږ نه تر لږه.
ـــــمايه : - (ـــــ ما + ي)(ف تر ، صف ـــــ مذ/مو)(۱) د کمې پنګې والـه ، د لـږې سـرمائې والـه (۲) (د عقـل پـوهې لياقـت وغېـره) کماوښت (۳) هغه چې مال نۀ لري.بې ماله ، خوار.
ـــــمايګي : - (ـــــ ما + ي + ګي)(ف تر ، اس ، مو)(۱) د پنګې کموالے ، د سرمائې لږوالے (۲) د عقل ، پوهې ، لياقت وغېره کماوښت ، (۳) د مال دولت کماوښت ، خواري بې مالي.
ـــــمهارت : - (ـــــ م + ها + ر + ت)(و ـــــ کم مهارته)
ـــــنصيبه : - (ـــــ ن + صي + ب) (عف ، تر ، صف ، مذ ، مو) (و ـــــ کم بخته)
ـــــنصيبي : - (ـــــ ن + صي + بي)(و ـــــ کم بختے)
ـــــنظرے : - (ـــــ ن + ظ + رے) (فپ ، تر ، صف ، مذ ، مو)(۱) هغه چې نظر ئې کم وي.کمزوري نظر واله.(۲) لنډ نظرے ، کم ظرفه ، هغه چې لرې ئې نظر نۀ رسي.
ـــــنظري : - (ـــــ ن + ظ + ري)(عف ، تر ، اس مو)(۱) د نظر کوم والے ، د نظر کمزوري(۲) چا ته په کم نظر کتل ، سپک نظري (۳) لنډ نظري ، کم ظرفي
ـــــنه بودل، د چا نه / څخه : -د چا نه په مال دولت درجه وغېره کښې کم نه ,,بودل ،، لکه : فلانے د چا نه کم خو نۀ دے.
ـــــنه کم : - (ـــــ ن + ک + م) (فپ ، تف)د لږ نه لږ ، ډېر زيات لږ ، کم از کم د کوم څيز هغه مقدار يا شمېر چې د هغې نه نور نۀ شي کمېدے.
ـــــنيول : - ځان کم ګڼل ، لوئي نۀ کول.

د بې ننګو پښتنو له غمه ما
لوئي پرېښوه ونيوله کمه ما (خوشحال)

ـــــواک : - (ـــــ وا + ک) (و ـــــ کمواک)
ـــــوالے : - (ـــــ وا + لے) (و ـــــ کموالے)
ـــــو بېش : - (ـــــ (مو) بې + ش) (ف تر ، تف)کم و زيات ، څۀ لږ شان د پاسه يا څۀ لږ شان کم.اندازةً ، تقريباً

کم و بېش که مې له لاسه واقع کېږي
يم سـرے شـکم لرم بې شکم نۀ يم (رحمان)

ـــــو زيات : - (ـــــ (مو) ز + يا + ت)(فپ تر ، عدد) کم يا زيات ، څۀ لږ غوندې کم يا لږ شان زيات.تقريباً ، خواو شا ، شاوخوا.
بېش و کم ، يا څۀ کم يا څۀ زيات

يو لک څليريشت زره کم و زيات پېغمبران دي
کل واړه مــدام دي ثنـــا خــوان د محمد (خوشحال)

ـــــو زيات کول : - چاته کم او چاته زيات ورکول.

کم قسمته بـه نۀ کم نۀ به څۀ زيات کا
دا د واړه اندېښني دي کم و زياتې (خوشحال)

ـــــو زيات ويل : - مجازاً بد وئيل ، د حده تيرې خبرې کول.

منکران چې سترګې پټې که د شرم
د مريمې پـه باب وائي کم و زيات (حميد)

ـــــو کاست : - (ـــــ (مو) کا + س + ت)(ف تر ، تف) د ,, کاســـت ،، معنـې هـم د ,, کم ،، ده يعنې د هېڅ قسم کمے عموماً پـه نفي کښې استعمالېږي لکه : بې کم و کاست ټول حال مې ورته ووې.
ـــــهمت : - (ـــــ ه + م + مَ + ت) (و ـــــ کم همته)
ـــــهمته : - (ـــــ هـ/هي + مُ + مَ + تَ)(ف تر ، صف ، مذ/مو) کم همت واله ، کمې حوصله واله.بې همته ، بې حوصلې ، بې زړۀ.

**ـــــهمتي :** – (ـــــهـ + م + م + تي) (ف تر ، اس ، مو) د همت کمے ، د حوصلې کمے ، بې زړۀ توب ، د جرات کماوښت.

**ـــــهېوادونه :** – (ـــــهي + وا + دو + ن) (پ تر ، اس ، ج) وړۀ ملکونه ، ورکوټي ملکونه.

**ـــــياب :** – (ـــــيا + ب) (و ـــــ کمياب)

**کم :** – (ک + م + م) (ع ، اس ، مذ) شمره ، شومره لکه : د کم او کېف په لحاظ سره. د شومره او څنګه په لحاظ سره.

**کما :** – (ک + ما) (ع ، حرف) (۱) لکه څنګه چې .... (۲) په پښتو کښې د تابع مهمل په طور "زما" سره راځي. او د فلاني ډينګلي معنې ورکوي. يا. د يو ځاے بل ځاے.

**ـــــحقه :** – (ـــــح + ق + ق + هو) (ع ـ جمله) لکه څنګه چې ئې حق دے. لکه څنګه چې پکار دي. ټيک ټيک. په صحيح او درسته طريقه يا انداز.

**ـــــفي الاول :** – (ع تر ، تف) لکه څرنګ چې په اول (سر) کښې وو يا وه

**ـــــفي السابق :** – (ــ ف + س + سا + ب + ق) (ع ، جمله) لکه چې پخوا وو. د پخوا په شان. لکه چې وړاندې تېر شول. د تېر بيان په شان ، د نور کله په شان.

**ـــــهي :** – (ـــــهي) (ع ، جمله) لکه څنګه چې هغه ده. لکه څنګه چې پکار ده.

**ـــــينبغي :** – (ـــــي + م + ب + غي) (ع ، جمله) لکه څنګه چې پکار دي. لکه څنګه چې بويه.

**کماچو :** – (ک + ما + چو) (اس ، جم) د يوې سبزۍ نوم دے. کچماچو ، ګيدړ کور (ع ـــ عنب الثعلب)

**کمازي :** – (ک + ما + ز + ي) (اس ، مع) د اتمانزو څانګه ده. اتمانزي ، مندڼ ، يوسفزي دي).

**کمال :** – (ک + ما + ل) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ات) (۱) ټول ، درست ، پوره کېدنه ، بشپړېدنه ، (۲) فضيلت ، لوئي ، فوقيت (۳) خوبي ، ښائست ، اعجاز ، استادي ، کاريګري (۴) هنر ، لياقت ، جوهر.

**کمال خجندي :** کمال خجندي ، د فارسۍ ژبې يو مشهور شاعر.

چې د شعر په سبب سره ياد ېږي
که حسين دے که خسرو دے که کمال (خوشحال)

**ـــــته رسول :** – اخري حد ته رسول ، (څۀ علم يا هنر) سرته رسول.

**ـــــته رسېدل :** – (و ـــــ کمال حاصلول)

**ـــــحاصلول :** – په کوم هنر يا فن کښې د ټولونه اوچتې درجې ته رسېدل. د اخري درجې مهارت حاصلول.

**ـــــدار :** – (ـــــدا + ر) (عف تر ، صف ، مذ ، مو ـ ه) کمال لرونکے په کوم کار کښې ډېر مهارت لرونکے. د کمال يا د هنر خاوند.

**ـــــدار سې :** – (ـــــدا + ر + سې) دعائيه جمله ، د کمال خاوند شې. خداے دې کمال ته ورسوه.

**ـــــکول :** – استادي ښودل ، کاريګري ښودل. هنرمندي ښودل ، غضب کول. ډېره عجيبه يا د نۀ منلو خبره کول. خبره يا کار کول. (طنزاً وئيلے شي)

**دـــــ :** – پوره ، د اعلى درجې ، د ټولونه د لوړې درجې. ډېر زيات ماهر ، د ډېر زيات مهارت.

**دـــــدرجې :** – (ـــــد + ر / ر + جې) (عپ تر ، صف) د اعلى درجې ، ډېر اعلى ، د اوچتې درجې.

**صاحبـــــ :** – (صا + ح + ب ـــــ) (عف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) د کمال څښتن ، د کمال خاوند ، هنرمند ، مهارت لرونکے.

**کمالات :** – (ک + ما + لا + ت) د "کمال" ، جمع ده. کمالونه ، د اعلى درجې کارونه ، حيرانوونکې کارنامې.

**صاحبـــــ :** – (صا + ح + ب ـــــ) (عف تر ، صف) د کمالونو څښتن ، هغه سړے چې ډېرې خوبۍ يا هنرونه لري.

**کمالي :** – (ک + ما + لي) (عپ تر ، صف) کمال ښودونکے ، د کمال خاوند ، صاحب کمال ، کمال لرونکے.

**کمامت :** – (ک + ما + م + ت) (پ ، اس) کمي ، کموالے.

**کمان :** – (ک + ما + ن) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) لينده ، هغه اله چې غشي پرې ويشتلے کېږي.

سماء سم نه کړو زما سهم هدف ته
په ستم ئې خميده کړم تر کمانه (حافظ)

**ـــکښي :** – (ـــک + خي / شي) (ف تر ، اس ، مو) کمان راښکنه ، لينده راښکنه.

**ـــــګر :** – (ـــــګ + ر) (ف تر ، صف ، مذ ، ج ـــ ه) ليندې جوړوونکے ، ليندې سازوونکے.

**ـــــګري :** – (ـــــګ + ري) (ف تر ، اس ، مو) کمانونه جوړونه ، ليندې جوړونه ، د ليندو د جوړولو هنر.

**کمان :** – (ک + ما + ن) (انګ ، اس ، مو) (۱) حکم ، اړر ، فرمان (۲) افسري ، سرداري (انګ ـ کمانډ).

**ـــــافسر :** – (ـــــاف + س + ر) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د کمانډنګ افيسر بدل شکل ، د فوځ لوے افسر ، د فوځ لوے حاکم يا سردار.

**کمانچه :** – (ک + ما + ن + چَ) (ف تر ، اس ، مو ، ج ـــ چې)

(۱) وړوکې لينده ، ليندګۍ (۲) د يو ايراني ساز نوم دے.

(ددغې ساز نه د مغربي ملکونو "وائيلن" ، جوړ شوے دے. ايرانيان ورته کمانچه فرنګي وائي).

**کماند :** – (ک + ما + ن + د) (فر ، اس) (و ـــ کمانډ)

**ـــــکول ، د فوځ :** – د فوځ سالاري کول. په فوځ حکم چلول.

**کمانډ :** – (ک + ما + ن + ډ) (انګ ، اس) حکم ، امر ، حکم چلونه.

**کمانډر :** – (ک + ما + ن + ډ + ر) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) حکم کوونکے ، حکم چلوونکے د فوځ يو لوے افسر ، د لښکر لوے افسر ، سپه سالار.

**ـــــان چيف :** – (ـــــا + ن + چي + ف) يا (ـــــډ + ر + ن ـــــ) (انګ ، اس ، مذ) د فوځ د ټولو نه لوے افسر ، سپه سالار اعظم ، عمومي کوماندان.

**کمانډري :** – (ک + ما + ن + ډ + ري) (انګ ، پ تر ، اس ، مو) د فوځ افسري کونه ، کمان.

**کمانکښ :** – (ک + ما + ن + ک + خ (ش)) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) کمان راښکونکے ، لينده راښکونکے.

**کمانه :** – (ک + ما + نَ) (اس ، مو ، ج ـــــ نې) لينده ، وړه لينده ، هغه خاص لينده په کومه چې د تارونو والاساز غږولے شي.

**کمانۍ :** – (ک + ما + ن + ۍ) (اس ، مو) (۱) د ليندې د لړګي په شان کړې (د قوس د شکل) د فولادو لچکدارې پټۍ چې د ټانګو ، ربړو او نورو ګاډو د پايو دپاسه لګېدلې وي. چې ټانګه ربړه وغېره په تلو کښې جټکې نۀ خوري. (۲) پر ګړئيو کښې هغه تاو شوے لچکداره پرزه چې د ګړۍ رفتار پرې په قابو کښې ساتي. (انګ : سپرنګ) (۳) هره هغه پرزه چې لچک لري او د کوم څيز حرکت په قابو کښې ساتي.

**کمباړي :** – (ک + م + با + ړي) (اس ، مو) کلال توب ، د کولال کسب کار (اصلاً د هندۍ د "کمهار" ، بدل شکل دے).

**کمبرے** :- (ک + م + ب + رے) (اس ، مذ) نارنج.

**کمبـــرے** :- (ک + م + ب + رے) (اس ، مـذ) (۱) د اودلــي شــوي ځيزونــو سورے (۲) سورے ، کومبړ.

**کمبل** :- (ک + م + ب + ل) (هـ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) وړين غټ څادر ، (خصوصاً هغه چې په مشين اودلے شوے وي) شړۍ ، (خو شړۍ اصلاً په کډۍ اودلې شوې وړين څادر ته وائي) (ځينې خلک مؤنث کمبله هم وائي) په اردو کښې ستغ وړين څادر ته وائي .چې عموماً قېديانو له ورکړے کېږي.ځکه د کمبل او د شړۍ معنیٰ ځېله ګډې وډې شي)

**ـــــ پوش** :- (ـــــ پو + ش) (هـ ، ف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) کمبل اغوستونکے ، هغه چې کمبل ئې اغوستې وي.

**کمبله** :- (ک + م + ب + لَ) (اس ، مو ، ج ـــــ لې) د کمبل تانيث دے.

**کمبلــې** :- (ک + م + ب + لــې) (۱) د ,, کمبلــه ،، جمـع ده .(۲) د ,, کمبلــه ،، اضافي او مجروري وغيره (متغير) شکل.

**خپلې ـــــ سره پښې غزول** :- پښې (خپې) دومره غزول چې د کمبلې نه بهر ووځي.مجازاً خپل امدن يا د حېثيت مطابق خرڅ کول.

**کمبلۍ** :- (ک + م + ب + ل + ۍ) (اس ، مو) وړوکې کمبل ، وړه کمبله.

**کمبلۍ** :- (ک + م + ب + ل + ۍ) (اس ، مو) د ګلونو پټنګ ، تاره کۍ. کوکنه تاروګۍ.

**کمبو** :- (ک + م + بو) (اس ، مذ ، ج ـــــ ګان) ترنګر ، د وښو وغيره د وړلـو ترنګر ، (خصوصاً هغه چې د وړينو پړو نه جوړ شوے وي) پشمي ترنګر.

**کمبوت** :- (ک + م + بو + ت) (اس ، مذ) کمے ، کم والے .لکه : د خوراک د شيانو کمبوت لرې شي.

**کمبوتي** :- (ک + م + بو + تي) (و ـــ کمبود)

**کمبوچيا** :- (ک + م + بو + چي + يا) (اس ، مع) د ايشيا سهېل نمر خاتهٔ کښې د يو ملک نوم.

**کمبود** :- (ک + م + بو + د) (اس ، مذ) کماوخت ، کم ملاوېدل ، کميابي لکه : د کاغذ د کمبوت له امله.

**کمبودے** :- (ک + م + بو + دے) (اس ، مذ) (و ـــ کمبود)

**کمبوز** :- (ک + م + بو + ز) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) کورے ، د بوڼ وغيره نه جوړه شوې هغه جاليداره ټوپۍ کومه چې د اوښانو خولې ته اچولې شي - (چې په لاره وابښهٔ نهٔ شي خوړلے).

**کمبوئے** :- (ک + م + بو + ئے) (اس ، مذ) د يوې مرغۍ نوم دے.

**کمبه** :- (ک + م + بَ) (اس ، مو ، ج ـــــ بې) خمبه ، کولۍ ، انبار خانه ، لوے کندو (د غلې).

**کمبۍ** :- (ک + م + ب + ۍ) (اس ، مذ) (۱) لويـه ګوتـه (انګشـتري) (۲) کتـه ګوته.

**کمبيله** :- (ک + م + بے + لَ) (و ـــ کامبيله)

**کمپار** :- (ک + م + پا + ر) (اس ، مـذ ، مـو ـــــ ه) کـلال ، کـولال ، خـاورين لوښي جوړوونکے.

**کمپاس** :- (ک + م + پا + س) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) د ګـړۍ په شان يوه اله چې يوه ستن ئې د مقناطيس په وجه هر وخت قطب طرف ته وي چې قطب معلوم شي نو نور طرفونه ترې په اسانه معلومېدے شي .د طرفونو د معلومولو اله.قطب نما (۲) د زمکې د کچ کولو يوه اله (۳) د زاوئې د معلومولو يوه اله

**کمپالا** :- (ک + م + پا + لَ) (اس ، مـــع) د افريقـــې د ملـــک يوګنـــړا دارالحکومت دے.

**کمپټرولر** :- (ک + م + پ + ټ + رو + ل + ر) (انګ ، اس ، فا ، ج ـــــ ان) چېونکے ، د نورو حساب کتاب کتونکے او څېړونکے.(عام خلک ورته ,, کنټرولر ،، وائي چې درست نهٔ دے)

**کمپرېسر** :- (ک + م + پ + ر + س + س + ر) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) په ريفريجريټر وغيره کښې يوه اله.

**کمپني** :- (ک + م + پ + ني) (انګ ، اس ، مو ، ج ـــــ انې) (۱) ټولے ، ډله ، جماعت ، طائفه (۲) د فوځيانو يو ټولے (۳) سوسائټي ، د ملګرو ډله.

**کمپني** :- (ک + م + پ + ني) (انګ ، اس ، مع) د انګرېز سوداګرانو يوه ډله چې د وولسمې پېړۍ په سر کښې د تجارت دپاره هندوستان ته راغلې وه چې ايسټ انډيا کمپني نومېده .وروستو دې کمپنۍ د سـوداګرۍ پـه ځـاے فـوځي کاروـنـه شـورو کـړل اوددې ملـک د مسلمانانو بادشاهانو د بې اتفاقۍ او کمزورۍ نه ئې فائده واخسته او ډېر ملک ئې ترې نه لاندې کړ .چې وروستو انګلستان بادشاه د حکومـت کـار پـه خپـل لاس کښـې واخسـت اوبيـا ئـې پـه درست هندوستان تر لوئې مودې پورې بادشاهي وکړه .دې کمپنۍ خپله سکه هم چلولې وه.

**کمپوت** :- (ک + م + پو + ت)

**کمپوټ** :- (ک + م + پو + ټ) (انګ اس) شمېرل ، حساب لګول.

**کمپوډر** :- (ک + م + پو + ډ + ر) (و ـــ کمپونډر)

**کمپوزېټر** :- (ک + م + پو + زي + ټ + ر) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان) په چاپه خانه کښې هغه سړے چې د ټائپ توري په سانچه يا قالب کښې په ترتيب سره يو ځاے کوي.

**کمپوزيشـن** :- (ک + م + پـو + زي + ش + ن) (انـګ ، اس ، مـذ) (۱) جوړښت ، تشکيل ، ترتيب (۲) د ځانه ليکنه ، تصنيف ، مضمون.

**کمپوسټ** :- (ک + م + پو + س + ټ) (انګ ، اس ، مذ) د سخا شوؤ پاڼو سره ، نباتي سره.

**کمپونډر** :- (ک + م + پو + ن + ډ + ر) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) مختلف قسمه داروګان يو ځاے کوونکے ، دوا ساز ، په هسپتالونو کښې د ډاکټر ليکلو شوو نسخو مطابق دواياني جوړوونکے .عام خلک ورته کمپوډر وائي.

**کمپونډري** :- (ک + م + پـو + ن + ډ + ري) (انګ ، اس ، مـو) د کمپونډر کار ، د کمپوډر کار ،مختلف داروګان په خاص اندازه يو ځاے کول.

**کمپيوټر** :- (ک + م + پو + ټ + ر) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ان) يـــــو مشين چې حساب (جمع تفريق وغيره) پرې کولے شي.يو قسم مشيني دماغ دے متفرق کارونه پرې کولے شي.کمپيوټر ، کمپوټر.

**کمتر** :- (ک + م + ت + ر) (ف تر ، صف ، مذ ، مو - ه) ډېر لږ ، ډېر کم ، کم کوز

**کمتره** :- (ک + م + ت + رَ) (اس ، مو ، ج ـــــ رې) کوتره ، کونتره.

**کمتـري** :- (ک + م + ت + ري) (ف تـر ، اس ، مـو) کمے ، لږوالے ، پـه درجه کښې کوزوالے.

**کمترين** :- (ک + م + ت + ري + ن) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) د ټولـو نـه کم ، د ټولـو نـه د لاندې درجې .عموماً افسـرانو يـا مشـرانو تـه پـه درخواست يا خط (ليک) کښې د خاکسارۍ او عاجزۍ په طور خپل نوم سره ليکلے شي.

**کمشرۍ** :- (ک + م + م + ث + را) (ع ، اس) امـــرود ، مشـــهوره مېـــوه ناشپاتۍ ته هم وائي.(په پښتو کښې ئې استعمال شاذ دے)

قدر په بازار کښې د هر شي په تفاوت دے
کار د کمشرۍ نشته کشمش مويز شيرين ته (حافظ)

**کمچ** :- (ک + م + چ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د کيږدۍ (د کوچيانو تنبو) تيرګوټے

**کمچه** :- (ک + م + چَ) (اس ، مو ، ج ـــ چې) د تنبو وغيره ستن ، څکيز ، سدام

**کمچه** :- (ک + م + چَ) (اس ، مو ، ج ـــ چې) هغه اوږد لرګے چې بار پرې تړلے شي

**کمچه** :- (ک + م + چَ) (اس ، مو) هغه اوږدۀ لرګي چې ځبله وتړلے شي او مړے پرې بل ځاے ته وړلے شي.

**کمچه** :- (ک + م + چَ) (اس ، مو) قچه (ګوته) کچه (ګوته).

**کمچه** :- (ک + م + چَ) (ت ، اس ، مو) د ټولونه وړه پوښتنۍ ، خمچه.

**کمخي** :- (ک + م + (ت) س + ی) (اس ، مو) د ښځې د سر وېښتۀ چې په خاص طريقه غښتلے شوي وي.

**کمخاب** :- (ک + م + خا + ب) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) يو قسم قيمتي رېښمين ټوکر چې په زري تارونو ګلونه جوړ شوي وي. زربفت.

**کمر** :- (ک + م + ر) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) مْلا (۲) د سينه ، خوږ د غاړې اوچته زمکه.

**ـــ بسته** :- (ـــ ب + س + ت) (ف ، تر ، صف ، مذ / مو) ملاتـــړلے ، کوم کار دپاره تيار او مستعد.

**ـــ بند** :- (ـــ ب + ن + د) (ف ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه پټه چې د ملا نه تاوؤلے شي. د ملا د تړلو پټه.

د چا لاس به کمربند د هغې ملا شي
چې هـر ګـز لـه باريکۍ نشي ليدۀ (حميد)

**ـــ بندي** :- (ـــ ب + ن + د + ي) (ف تر ، اس ، مو) (۱) ملا تړنه ، د ملا پټې د ملا نه چاپېره کونه. (۲) کوم کار ته تيارے.

**ـــ چين** :- (ـــ چي + ن) (ف تر ، اس ، مذ) د پخواني فېشن يو جامه ، چې د ملا په خوا کښې به په کښې ډېر پلېټونه (چپنونه) وو.

**ـــ شکن** :- (ـــ ش + ک + ن) (ف پ ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ملا ماتوونکے دومره زيات بار يا پېټے چې د وړونکي ملا ماتوي. مجازاً حوصله شکن ، همت خطا کوونکے. د سينه د غاړې ، کمرې نړوونکے.

**ـــ کيسه** :- (ـــ کي + س) (ف تر ، اس ، مو ، ج ـــ ې) هغه کڅوړه ياهمياني چې ملا سره تړلې شي.

**کمر** :- (ک + م + ر) (ف ، اس ، مو ، ج ـــ رې) پـاڼ ، تـاک ، ګړنـګ ، ستاتګ ، تړه.

**ځان له ـــ غورزول** :- د پاڼ د سر نه ځان په ښکته غورزول ځان هلاکول ، ځان تباه کول.

**د ـــ په سر ولاړ** :- د ټانګ په سر ولاړ. د پاڼ په غاړه ولاړ. مجازاً : په ډېر نازک او خطرناک حالت کښې. که لږه بې احتياطي کوي نو ګړنګ ته به پرېووزي.

**کمر** :- (ک + م + ر) (اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) برګ ، ابلق ۲) ابلق اس.

**کمرخ** :- (ک + م + ر + خ) (و ـــ کمرک)

**کمرغالے** :- (ک + م + ر + غا + لے (ف ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ لي) سورے ، ډوغل ، سمڅ.

**کمرغوړے** :- (ک + م + ر + غ + و + ګے / ړے) (ق ، صف) هغه سړے چې ډېر هوښيار نۀ وي. خو چې کم عقل هم نۀ وي. د متوسط عقل خاوند.

**کمرک** :- (ک + م + ر + ک) (انګ ، اس ، مذ) يو قسم نرۍ او مهينه کپړه (عوام ورته عموماً ,,ګرخ،، وائي) (انګ : کېمبرک)

**کمرک** :- (ک + م + ر + ک) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) يو قسم ازغن (اغزن) بوټے دے چې پاڼې نۀ لري. دانې کوي. چې اومې وي نو ترخې وي خو پخې شي نو خوږې شي.

**کمرکښ** :- (ک + م + ر + ک + خ / ش) (هـ ، اس ، جم) دوائي ده (ګوند) کتيرا ، (هندي او صحيح تلفظ ئې ,,کمرکس،، دے. څکه چې دا دوائي د ملا د مضبوطولو دپاره نورودارو ګانو سره ګډولے شي).

دار چيني او تج دلداره
کمرکښ او ماجو ياره (نعتنامه)

**کمرکه** :- (ک + م + ر + کَ) (اس ، مو ، ج ـــ کې) الماري ، (د جامو الماري)

**کمرګل** :- (ک + م + ر + ګ + ل) (اس ، مذ) د يو بوټي نوم دے. چې په کاڼو کښې پيدا کېږي. او خوړېږي. زېړ رنګې ګل کوي.

**کمره** :- (ک + م + رَ) (لاط ، اس ، مو ، ج ـــ رې) کوټه ، لويه کوټه ، پخه کوټه.

**کمره** :- (ک + م + رَ) د ,,کمر،، بدل شکل دے. چې ځينو مغيره تورو وغېره سره راځي. لکه : له کمره راغورزول.

**کمره** :- (ک + م + رَ) (اس ، مو ، ج ـــ رې) د ګوګوشتکې په شان يوه خړ رنګې مرغۍ ، خوش اوازه ده.

**کمره** :- (ک + م + رَ) (اس ، مو) په نکاح کړې ښځه.

**کمره** :- (ک + م + رَ) (اس ، مو) يو قسم سبزي ده چې خصوصاً د شنوارو په علاقه کښې ډېره کېږي.

**کمرۀ** :- (ک + م + رَ) (اس ، مذ) د يو بوټي نوم دے چې د اوښانو خوراک دے غونډې غونډې پاڼې لري.

**کمره** :- (ک + م + رَ) (اس ، مو) هغه صندوق چې لوهاران په کښې خپل اوزارونه ږدي.

**کمرے** :- (ک + م + رے) (اس ، مذ ، ج ـــ ي) ډونګرې ، چمچوړے ، لويه ملاغه چې بتياران په کښې اوبۀ را اخلي.

**کمرے** :- (ک + م + رے) (اس ، مذ) د وريجو (وريژو) پوستکي.

**کمزور** :- (ک + م + زو + ر) (سابقه) په فارسي کښې صفت دے. خو په پښتو کښې ,,کمزورے،، استعمالېږي. او ,,کمزور،، د سابقې په طور راځي.

**ـــ تيا** :- (ـــ ت + يا) (اس ، مو) کمزوري ، د زور قوت کمېدنه ، کم طاقتي

**ـــ کېدل** :- (و ـــ کمزورے کېدل)

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے) (اس ، مذ) کمزوري ، کمزورتيا ، کم طاقتي ، د زور قوت کمے.

**کمزورول** :- (ک + م + زو + ر + و + ل) (مص) (و ـــ کمزورے کول)

**کمـزوره** :- (ک + م + زو + ر) (صـف مـو ، ج ـــ رې) د ,,کمـزور،، (ياکمزوري) تانيث دے

ښځه کمزوره ده څکه انکار کا
پـه دا سبب ده هومره ښکاره (خوشحال)

**کمـزوري** :- (ک + م + زو + ري) (اس ، مو) (۱) کم طاقتي ، کم قوتي ، ناتواني ، د زور قوت کمے ، ضعيفي (۲) مالي کمزوري ، د دولت کمے (۳) د رجوليت کمے (۴) په تعليم سبق وغېره کښې د ملګرو نه وروستو پاتې کېدنه.

**کمزورے** :- (ک + م + زو + رے) (ف صف ، مذ ، مو) (۱) کم طاقته ، کم قوته ، په زور کښې کم ، ناتوانه ، ناطاقته (۲) د پېسو ټکو طاقت نۀ لرونکے. (۳) د رجوليت د قوت کمے (۴) په سبق وغېره کښې د نورو نه

وروستو.
ـــــــ**کول** :- قوت کمول ، طاقت لږول ، زور وقت کښې کمے راوستل.
ـــــ**کېدل** :- (۱) طاقت کمېدل ، قوت لږېدل (۲) مالي حالت خرابېدل.
**کمسن** :- (ک + م +س+ ن) (عف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) د لږ عمر ، کم عمره
**کمسني** :- (ک + م +س+ ني) (ف تر ، اس ، مو) وړوکے عمر ، کم عمري ، وړوکوالے.
**کمسور** :- (ک + م + سو + ر) (و ـــ کمسورے)
**کمسورے** :- (ک + م + سو + رے) (صف ، مذ ، مو) کم سور واله ، هغه ټوکے وغېره چې پلن والے ئې کم وي.
**کمشنر** :- (ک + م + ش + ن + ر) (انګ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د ضلعې د افسر نه لوے افسر ، د دوو یا د زیاتو ضلعو حاکم ، یوه لویه انتظامي عهده.
**هائي**ــــ :- (ها + ئي ـــــ)
**عالي**ــــ :- (عا + لي ـــــ) د کمشنر نه لویه عهده ، لوے کمشنر.
(خصوصاً هغه لوے ذمه دار افسر کوم چې په بل ملک کښې د خپل ملک د استوګنو د ضروریاتو وغېره خیال ساتي).
**کمشنره** :- (ک + م + ش + ن + رَ) د ,, کمشنر ،، تانیث دے.
**کمشنري** :- (ک + م + ش + ن + ري) (اس ، مو) هغه علاقه چې د یو کمشنر د انتظام او اختیار تر لاندې وي.
**کم طاقت** :- (ک + م + طا + ق + ت) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) کم قوت واله ، کمزورے. (عموماً ,,کم طاقته ،، استعمالېږي).
ـــــــ**کول** :- (و ـــ کمزورے کول).
ـــــــ**کېدل** :- (و ـــ کمزورے کېدل).
**کم عقل** :- (ک + م + ع + ق + ل) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه کس چې عقل ئې کم وي. لږ عقل واله ، کم پوهه ، بې عقله ، بېوقوف ، نادان ، ناپوهه.
ـــــــ**توب(۱)** :- (ـــــ تو + ب)
ـــــــ**تیا (۲)** :- (ـــــ ت + یا) (اس (۱) مذ ، (۲) مو) (۱) کم عقلي ، کم پوهي (۲) ناپوهي ، بېوقوفي ، حماقت ، ناداني.
**کم عقله** :- (ک + م + ع + ق + لَ) (۱) د ,,کم عقل ،، تانیث دے (۲) د ,,کم عقل ،، بدل شکل دے چې ځینو مغیره تورو سره استعمالېږي.
لکه : اے کم عقله !
**کم عقلي** :- (ک + م + ع + ق + لي) (اس ، مو) (۱) کم پوهي ، د عقل کمے ، د پوهې کمے. (۲) بېوقوفي ، حماقت ، ناداني.
**کم قدره** :- (ک + م + ق + د + رَ) (فپ ، تر ، صف ، مذ ، مو) (۱) هغه کس یا څیز چې قدر ئې کم وي. (۲) بې قدره ، هغه کس یا څیز چې قدر ئې ښېخي نهٔ کېږي.
**کم قدري** :- (ک + م + ق + د + ري) (اس ، مو) (۱) د قدر کمے ، د عزت اکرام کمے (۲) سپکوالے.
**کم قوته** :- (ک + م + قو + و + تَ) (فپ ، تر ، صف ، مذ ، مو) (و ـــ کمزورے).
**کم قوتي** :- (ک + م + قو + و + تي) (اس ، مو) (و ـــ کمزوري).
**کم قیمته** :- (ک + م + قي + م + تَ) (فپ تر ، صف ، مذ ، مو).
کم قیمت واله ، کمې بیعې واله. لږې بیعې واله ، ارزان.
**کم قیمتي** :- (ک + م + قي + م + تي) (اس ، مو) د قیمت کم والے ، ارزاني.
**کمک** :- (ک + م + ک) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) کومک ، امداد ، مرسته ، ملاتړ

ـــــــ**رسول** :- امداد (ور) رسول ، مدد (ور) رسول.
ـــــــ**غوښتل** :- (و ـــ کومک غوښتل).
ـــــــ**کول** :- امداد کول ، مرسته کول ، ملاتړ کول حمایت کول ، ملګرتیا کول ، لاس کول.
ـــــــ**ور رسول** :- (و ـــــ کومک ور رسول).
ـــــــ**ور کول** :- (و ـــ کومک ورکول).
د ـــــ **شخه ځان سیمول** :- (د چا) د امداد نه ځان ژغورل. د چا سره لاس کولو نه ځان ژغورل.
**کمکلے** :- (ک + م + ک + لے) (اس ، مذ ، ج ـــ لي) (۱) وړوکے ، کمګوټے (۲) ریزه
**کمکے** :- (ک + م + کے) (صف ، اس ، مذ ، ج ـــ کي / ان) وړوکے ، کچ ، ورکوټے

لامې نور باغونه ډېر دي
کمکے باغ مې د ارم دے (خوشحال)

ـــــــ**اختر** :- (ـــــ ا + خ + ت + ر) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـ کمکي اخترونه) وړوکے اختر ، عیدالفطر).
ـــــــ**هلک** :- (ـــــ هـ + ل + ک) (پ تر ، اس ، مذ) وړوکے هلک.
ـــــــ**والے** :- (ـــــ وا + لے) (اس ، مذ) وړوکوالے ، ورکوټوالے ، کوچینوالے هلکوانه.
**کمکے** :- (ک + م + کے) (اس ، مذ ، ج ـــــ کي / ان) امدادي ، مرستیال ، ملاتړ ، حمایتي.
**کمکي** :- (ک + م + کي) (صف) (۱) امداد کوونکے (۲) کمک سره تعلق لرونکے ، کمک ته منسوب لکه : کمکي فعل.
**کمکینه** :- (ک + م + کي + نَ) (اس ، صف ، مو) وړوکوالے ، کمکي توب ، هلکوانه ، کچ عمري.
**کملې** :- (ک + م + ل + ې) (ق ، اس ، مو) هغه ښځه چې د دوؤ کسانو پرې دعویٰ وي. دربم ګړي سړي ته په دې خیال ورکړے شي چې دغه جګړه ختمه شي.
**کم مهارته** :- (ک + م + م + ها + ر + تَ) (ف تر ، صف ، مذ ، مو) هغه چې پوره مهارت نهٔ لري. هغه چې په کوم کار کښې پوره استاذ نهٔ وي.
**کمنټري** :- (ک + م + ن + ټ + ري) (انګ ، اس ، مو) تبصره ، تنقیدي او تشریحي وینا.
**کمند** :- (ک + م + ن + د) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) هغه پړے چې په سر ئې کونډې لګېدلې وي. چې په قلا یا دېوال ور ګوزار شي نو کونډې بره ونښلي او بیا ددغې په مدد سره (غلهٔ یا سپایان) قلا ته خېژي. (۲) لومه ، چې د پړي په سر جوړه کړے شي او په دې ځناور رانیسي. کپړه (د اسونو کمند) دا په اصل کښې خم + وند یعني خم یا کوږ والي واله وو. ډېر استعمال که ترې کمند جوړ شهٔ)
ـــــــ**انداز** :- (ـــــ ا + ن + دا + ز) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) کمند غورزوونکے ، لومه ور اچوونکے.
ـــــــ**شلېدل** :- (۱) د کمند په زور دېوال وغېره ته ورختو په وخت پړے شلېدل. (۲) مجازاً په کوم مقصد یا کوښښ کښې ناکامیابه کېدل.
ـــــــ**ور اچول** :- (و ـــ کمند ور غورزول)
ـــــ**ور غورزول / ورغورځول** :- کنډې دار پړے (دیوال یا قلا ته) ورلړه کول.
**کمندرې** :- (ک + م + ن + د + ر + ې) د ,, کمندرے ،، تانیث دے.
**کمندرے** :- (ک + م + ن + د + رے) (صف ، اس ، مذ ، ج ـــ ي)
(۱) معذور ، پسته قدر ، لبستونک (۲) کمزورے.

**ـــــــوالے** :- (ــــــوا + لے) (اس ، مذ) (۱) مړاوے کېدنه ، مړاوے توب (۲) سست پست حالت.

**کمنګـر** :- (ک + م + ن + ګ + ر) (ف تـر ، اس ، مـذ ، ج ـــــان) (۱) لینـدۍ جوړوونکے ، کمان ساز (۲) مات هډوکي پیوندوونکے.

**کم نصیبه** :- (ک + م + ن + صي + بَ) (فپ تر ، صف ، مذ ، مو) لږ بخت واله ،مجازاً بدنصیبه ، بدبخته ، بدقسمته.

**کم نصیبے** :- (ک + م + ن + صي + بے) (و ـــــ کم نصیبه)

**کم نصیبي** :- (ک + م + ن + صي + بي) (اس ، مو) د نصیب لږ والے ، مجازاً : بدنصیبي ، بدبختي ، بدقسمتي.

**کم نوره** :- (ک + م + نو + رَ) (فپ تر ، صف ، مذ ، مو) لږ نور یا رڼا واله لږ نظر واله ، کم نظره .لکه :- سترګې ئې کم نوره شوې.

**کمڼ** :- (ک + م + ڼ) (صف ، مذ ، مو ــــــه) (۱) مړاوے شوے ، پژمرده (۲) سست پست.

**کمـو** :- (ک / کُ + مـو) د کـم (جمـع) (د استفهام تـورے دے) اضـافي او مجـروري (متغیـر) شـکل دے .لکـه : دا خبـره دې د کومـو خلقـو نـه اوریدلې ده ؟

**ـــــــکمو** :- د ,, کمے کمے ،، اضافي یا مجروري وغېره (متغیر) شکل.

**کمواک** :- (ک + م + وا + ک) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــــه) لږ اختیـار والـه ، کم اختیاره ، د معمولي اختیار خاوند.

**کمواکي** :- (ک + م + وا + کي) (اس ، مو) لږ اختیار ، معمولي اختیار لرنه ، بې اختیاري.

**کمواکے** :- (ک + م + وا + کے) (و ـــــ کمواک)

**کموالے** :- (ک + م + وا + لے) (اس ، مذ) کمے ، کماوښت ، لږ والے.

**کموده** :- (ک + مو + دَ) (اس ، مو ، ج ـــــ دې) نرۍ وریجې / وریژې. دا لفظ د جمعې په شکل کښې د اسم جمع په طور استعمالېږي.یعنې کمودې.لکه : په خېرات کښې کمودې پخې کړې دي.

**کمـوډ** :- (ک + مـو + ډ) (انګ اس ، مـذ ،ج ــــونـه) د غُلـو متیـازو لوښے ، متیازغالے ، چې په تټي (بیت الخلاء) کښې کښېښنودے شي.

**کمـوډور** :- (ک + مـو + ډو + ر) (انګ ، اس ، مـذ) د بحـري فـوځ یـو لـوے منصبدار ، چې د کپتان نه یو درجه بره وي.

**کمول** :- (ک + مو + ؤ + ل) (مص) (۱) لږول ، کمے راوستل (۲) د کوم څیز نه څه برخه لرې کول.وضع کول ، منها کول.

**کمول** :- (ک + مو + ل) (اس ، مذ ، ج ـــــان) یو ابي مرغۍ ، چې اوږدې پښې او اوږده غړانګه لري.کومول (هــسارس)

**کمونزم** :- (ک + مو + ن + ز + م) (و ـــــ کمیونزم)

**کمونست** :- (ک + مو + ن + س + ت)

**کمونیست** :- (ک + مو + ني + س + ت) (و ـــــ کمیونسټ)

**کمونستي** :- (ک + مو + ؤ ن + س + تي) (و ـــــ کمیونستي)

**ـــــــپارټي** :- (ـــــپا + ر + ټي)

**ـــــــحزب** :- (ـــــح + ز + ب)

**ـــــګوند** :- (ـــــګو + ن + د) د کمیونستانو جماعت یا ډله.

**کمونه** :- (ک + مو + ن) (حمص) کمے راوستنه.لږونه

**کموونکے** :- (ک + م + وو + ن + کے) (اس ، فا ، ج ـــــ کي) لږوونکے ، په مقدار یا شمېر کښې کمے راوستونکے.

**کمه** :- (ک + مَ) د ,, کم ،، تانیث دے.

**ـــــــدرجه** :- (ـــــد + ر + جَ) (فپ ، تر ، اس ، ج ـــــ جې) لاندې درجه ، لاندې مرتبه.

**ـــــــنیول** :- په لږ څهٔ صبر کول.په لږ قناعت کول

د بې ننګه پښتنو له غمه ما
لوئي پرېښوه ونیوله کمه ما (خوشحال)

**کم همته** :- (ک + م + هـ / هي + م + م + تَ) (فپ تر ، صف ، مذ ، مو) لږ همت واله.مجازاً همت نهٔ لرونکے ، بې زړهٔ.

**کم همتي** :- (ک + م + هـ / هي + م + م + تي) (فپ تر ، اس ، مو) لږ همت لرنه ، بې زړهٔ توب ، بې همتي

**کمے** :- (ک + مے) (اس ، مذ ، ج ـــــ کمي) (۱) کـم والـے ، لـږ والـے ، نیمګړتیا ، کماوښت (۲) زوال ، تنزل ، پرېوتنه (۳) نقص ، عېب.

**ـــــــبیشے** :- (ـــــبے + شے) (پ تر ، تف) کمے یا زیاتے ، فرق.

**ـــــــپوره کول** :- (۱) د کوم څیز په مقدار یا شمېر کښې چې کوم کمے وي. د هغـه هـومره مقـدار یـا د شـمار څـیزونه ورشاملول چې پـوره شـي . (۲) نیمګړتیا لرې کول.

**ـــــــراتلل** :- نیمګړتیا راتلل ، د کوم څیز په مقدار یا شمېر کښې څهٔ برخه کمېدل.لکه :- د خدا ے پاک په خزانو کښې هېڅ کمے نهٔ راځي.

**ـــــــغوښتل، د چا** :- د چا نقصان غوښتل ، د چا تاوان غوښتل.

**ـــــــکول** :- (۱) په کوم کار کښې کمے راوستل، کوتاهي کول.خپل پوره کوښښ نهٔ کول .(عموماً په نفي کښې استعمالېږي) لکه : ستا کار کښې ما هېڅ کمے نهٔ دے کړے (۲) په څهٔ کښې کمے راتلل. لکه :- د سېلاب اوبهٔ هېڅ کمے نهٔ کوي (۳) کمېدل ،نهٔ پوره کېدل.

**ـــــــلرې کول** :- (۱) د کوم څیز په مقدار یا شمېر کښې چې کوم لږ والے وي هغه پوره کول.(۲) نقص یا عېب لرې کول.

**ـــــــنهٔ بودل** :- د کوم څیز کماوښت نهٔ ,, بودل ،، ډېر ,, بودل ،،

**د ځان ـــــبلل** :- خپل ځان ته کم وئیل ، کسرنفسي کول.

**کمے** :- (ک + مے) (ق ، اس ، مذ) یـو قسم بـوټے دے چې وارهٔ وارهٔ ازغـي (اغزي) او پلنې پلنې پاڼې لري.جاوله (ژاوله) ترې پیدا کېږي.

**کمیاب** :- (ک + م + یا + ب) (ف ، اس ، مـذ ، مـو ـــــه) (۱) کـم پـه لاس راتلونکے ، کم موندلے کېدونکے .(۲) نایابه ، ناپید ، نهٔ پیدا کېدونکے.

**کمیابي** :- (ک + م + یا + بي) (ف تر ، اس ، مو) (۱) کم په لاس راتلنه ، نهٔ پیدا کېدنه (۲) نایابي ، ناپېدي.

**کمیت** :- (ک + مي + ي + ت) (ع ، اس ، مـذ ، ج ــــونـه) مقدار ، څـومره والے ، څونه والے ، څهٔ قدر والے.لکه : کمیت نهٔ بلکه کېفیت پکار دے . د کمیت تغیر په کېفیت سره.

**کمیت** :- (کُ + مے + ت) (ف ، اس ، مذ) توربخن سوررنګے اس ، نیلے.

**کمېټي** :- (ک + مے + ټي) (انګ ، اس ، مـو ، ج ـــــانې) (۱) د یـو نـه زیـات منتخب شـوي وګـړي تـه چې کـوم کـار ورسپارلے شـوے وي مجلس ، جماعت (۲) د میونسپل کمېټۍ د مخفف په طور هم وایهٔ شي .(۳) د ګڼو کسانو په دې غرض غونډه جوړول چې هر یو غړے بـه دومره دومره رقم هره میاشت (یا هره هفته وغېره) ورکوي .دا شان چې څومره روپۍ جمع شي .په هغې هسک وباسي د چا نوم چې راووځي دغـه ټول رقم هغهٔ له ورکړے شي .دغه شان هر یو کس وار په وار دغه غونډه رقم وصولوي.او خپل څهٔ کار پرې روانوي.

**ـــــــاچول** :- د ګڼو کسانو هره میاشت یا هره هفته یو خاص رقم د جمع کولو او دغه رقم بیا په هسک (قرعه) یو کس له د ورکولو دپاره غونډه جوړول (و ـــــ کمېټي نمبر ۳)

**ـــــــراوتل** :- کمېټۍ کښې په هسک (قرعه) کښې نوم راوتل. (و ـــــ کمېټي نمبر ۳)

**میونسپل**:- (م+ یو + ن + س + پ + ل) یا (مي + و + ن + س + پ + ل) (و ـــ میونسپل کمېټي)

**کمېدان**:- (ک + مې + دا + ن) (انګ فر، اس، مذ، ج ـ ان) پولس (پولیس) او په فوځ کښې یوه لویه عهده، لوړے افسر (انګ: کمانډنټ)

**کمېدل**:- (ک + مې + د + ل) (مص) (۱) کمے راتلل، لږېدل، د کوم څیز په مقدار یا شمېر کښې کمے راتلل. (۲) د کوم څیز نۀ پوره کېدل. ناکافي ,,بودل،،

**کمېدنه**:- (ک + مې + د + نَ) (حمص) کمے راتلنه، لږېدنه، په مقدار یا شمېر کښې کمے واقع کېدنه.

**کمېدۀ**:- (ک + مې + د) (و ـــ کمېدنه)

**کمیز**:- (ک + مي + ز) (اس، مذ، ج ـــ ونه) سراب

دا برهان د ناداني دے شک پرې مه کړه

د اوبو ګومان خواره په کمیز شي (سعید)

**کمیس**:- (ک + مي + س) (اس، مذ، ج ـــ ونه / ان) د ,, قمیص،، بدل شکل دے. د بدن په برنۍ حصه کښې د اغوستلو مشهوره جامه، پېږنۍ، خت

**پهـــ کښې نۀ ځائیدل**:- په جامو کښې نۀ ځائیدل، ډېر زیات خوشحاله کېدل.

**کمیسار**:- (ک + مي + سا + ر) (انګ، اس، مذ) د یو ملک د پولې (سرحد) ساتونکے (په روس کښې د یوې حکومتي څانګې مشر).

**کمیسیان**:- (ک + مي + س + یا + ن) (اس جم) کېمسان. هغه سنهري یا دچاندۍ د رنګ پسته څرمن چې عموماً د پېوجې (ژۍ) وغېره پرې د ښکلا دپاره ګنډلے شي. او د مغزو په کار راوستے شي.

**کمیسیون**:- (ک + مي + سي + یو + ن) (و ـــ کمېشن)

**کمېشن**:- (ک + مې + ش + ن) (انګ، اس، مذ، ج ـــ ونه) هغه جرګه غونډه، جماعت یا ټولنه چې د کوم خاص مقصد دپاره مقرره شوې وي.

**کمېشن**:- (ک + مې + ش + ن) (انګ، اس، مذ، ج ـــ ونه) (۱) د کوم مخصوص خدمت په عوض کښې دلالي، اړت، دستوري (۲) ګمارنه، مقررونه (۳) د کوم خاص کار صلاحیت لرونکو څخه جوړه شوې جرګه، چې دغه کار سرته رسوي. (۴) په فوځ کښې د لوئې عهدې صلاحیت.

**ـــ اخېستل / اغیشتل**:- دلالي اخېستل، اړت اخېستل، دستوري اخېستل.

**ـــ ایجنټ**:- (ـــ اې + ج + ن + ټ) (انګ، تر، اس، مذ، ج ـــ ان) دلال، اړتي.

**ـــ کار**:- په کمېشن کار کوونکے.

**ـــ کښېناستل**:- د کومې معاملې په حقله د فېصلې یا د تحقیقاتو دپاره د مقرر شوې جرګې غونډېدل.

**ـــ مقررول**:- د کومې معاملې د حل کولو یا د تحقیقاتو دپاره یوه جرګه مقررول.

**پهـــ کار کول**:- په دلالۍ کار کول، کوم څیز د خرڅولو د محنت په بدله کښې مقرره رقم اخېستل. اړتي توب کول.

**کمیک**:- (ک + مي + ک) (اس، مذ) هغه څیز چې خندا راولي. خنداوو، کمیک، کامک.

**کمین**:- (ک + مي + ن) (ف، صف) (۱) کم، لږ (۲) د کمې درجې، کمینه، کم ذات (۳) دښمن ته ساو.

**ـــ ګاه**:- (ـــ ګا + (ه) (ف تر، ظر، مذ، ج ـــ ونه) هغه ځاے چې دښمن یا ښکار ته پټ په ځاو کښېني. پسونے، پټګنے.

**کمینه**:- (ک + مي + نَ) (صف) (۱) عاجز طبع، غریب طبع، خاکسار، متواضع، بې کبره (۲) رذیل، د ادنٰی درجې، بد ذات، کم ذاته.

دا لفظ د فارسۍ نه پور کړے شوے دے. او اصل معنٰی ئې همدغه نمبر ۲ ده. خو د ژبو (ځبو) د قاعدو تر لاندې ئې معنٰی په پښتو کښې بدله شوې ده. او عام طور سره دغه اولنۍ معنا ورکوي. خو په شعرونو کښې دغه دویمه معنٰی هم لیدے شي).

**ـــ توب**:- (ـــ تو + ب) (فپ، تر اس) (۱) د کمینه خلکو په شان کار، رذالت، بد ذاتي، پاسو والے. (۲) (خاص پښتو) عاجزي، بې کبري، ځان ته کم وئینه، فروتني.

**کمیني**:- (ک + مي + ني) (اس مو) (۱) عاجزي، خاکساري، تواضع بې کبري.

کمیني یو نادر کار دے

چې کمال ځنې اظهار دے (رحمان بابا)

(۲) رذالت، بد ذاتي

**کمیونزم**:- (ک + م + یو + ن + ز + م) (انګ اس، مذ) اشتراکیت، اشتراکي نظام.

**کمیونسټ**:- (ک + م + یو + ن + س + ټ) (انګ، صف، مذ، ج ـ ان، مو ـ ه) د اشتراکي نظام ماهر، یا د اشتراکي نظام پېروکار.

**کمیونسټ**:- (ک + م + یو + ن + س + ټ) (انګ، مذ، مو ـــ ه) هغه سړے چې د کمیونزم (اشتراکیت) عقیده لري.

**کمیونسټي**:- (ک + م + یو + ن + س + ټي) (انګ، اس، صف) (۱) هغه کار وغېره چې کمیونسټ تحریک سره متعلق وي. اشتراکیت ته منسوب.

**کن**:- (ک + ن) (ف، لاحقه) د فارسۍ لاحقه ده. نورو الفاظو سره راځي. او د کنستلو معنٰی ورکوي.

**کاریزـــ**:- (کا + رې + ز ـــ) (ف تر، اس، صف، مذ، مو ـ ه) د کاریز کنستونکے، د کاریز د کنستلو کار کوونکے.

**کوهـــ**:- (کو + ه ـــ) (ف تر، اس، مذ) مجازاً فرهاد، چا چې د خپلې معشوقې شیرین دپاره غر سورے کړے او (د پیو) والۀ ئې ترې د شیرین تر محله پورې راوستې وه. (و ـــ فرهاد)

**ګورـــ**:- (ګو + ر ـــ) (ف تر، اس، مذ، ج ـــ ان) قبر کنستونکے، قبر کندے

**کن**:- (ک + ن) (هـ، اس، مذ) (د ,, کان،، مخفف دے) غوږ (په پښتو کښې یواځې نۀ استعمالېږي په ځینو مرکباتو کښې راځي. لکه کن پټې.

**ـــ پټې**:- (ـــ پ + ټ + ې) (هـ، اس، مو) (۱) هغه مربع شان د څرمنې نه جوړه شوې پرده چې د ټانګو، بګو د اسونو سترګو ته تړلے شي. چې نېږ او ګڅ (کیڼ) طرف اس ته نۀ ښکاري بس مخامخ سړک لیدے شي

(۲) د غوږ او د سترګې تر مېنځه حصه.

**کن**:- (ک + ن) (ع، جمله) د حاضر امر صیغه ده. وُشه. پیدا شه یا موجود شه د قرآن پاک د یو ایت نه اخستے شوې ده چې خداے پاک کوم څیز پیدا کول غواړي. نو وائي چې ,, کُن،، نو مخې سره هغه څیز پیدا شي یا هغه کار وشي. (فیکون) په شعرونو کښې استعمالېږي.

پــه نــدا د کُــن راپــاسېــدم نــاڅــاپه

اودۀ پروت په توره شپــه کښې بیدار نۀ ووم (حافظ)

**ـــ فکان**:- (ـــ ف + کا + ن) (۱) وشه! نو وشوه. تشریح دپاره (و ـــ کن) (۲) کائنات

د دنیــا عـقـبٰی بـاغــونه په کښې واړه نعمتونه
واړه ستا دپاره جوړدي ته مقصود د کن فکان ئې (خوشحال)

**ــــــفیکون**:- (ـــــف+ي+کو+ن) (وــــــکن) کن:- (ک+ن) (ف، لاحقه) د فارسي لاحقه ده. نورو الفاظو سره راځي. او ,, کولو،، معنٰی ورکوي. لکه: کارکن.

**کار ـــــ**:- (کا+ر ــــ) (ف تر، اس، صف، مذ، ج ـ ان مو ـ ه) کار کوونکے، کارنده.

**کن**:- (ک+ن) (اس، مذ) (بازاري) لویـه کنـه، غټـه کنـه، لـوے لـوے کناټې.

**کن**:- (ک+ن) (سابقه) د ,, کومـه،، مخفف دے. د سابقې په طور نورو الفاظو سره راځي.

**ــــــبېر**:- (ـــــبې+ر) (پ تر، اس، مذ) د هر څیز لاندې برخه، د هر څیز ته

**کنات**:- (ک+نا+ت) (اس، مذ، ج ــــان) قند خرڅوونکے، حلوائي.

**کناټ**:- (ک+نا+ټ) (سابقه) سابقه ده. چې د کناټې معنٰی ورکوي.

**کناټور**:- (ک+نا+ټ+و+ر) (پ تر، صف مذ، مو ـــــ ه) (۱) لـوے لـوے کناټې لرونکے. (۲) طنزاً هغې کس ته وئیلے شي چې غټ پټ وي او کار نهٔ کوي. سست پست سړے.

**کناټې**:- (ک+نا+ټې) د ,, کناټے،، جمع ده. د بدن هغه غوښنه حصه کومه چې د ډوډۍ د هډوکي شاته د کښې دواړو طرفونو ته وي. او بني ادم چې کښېني نو په زمکه ئې لګوي. (ف ـ سرین)

**ــــــلګول، په زمکه وغېره**:- مجازاً کښېناستل.

**ــــــخوځول**:- (ـــخ+و+ز+و+ل)

**ــــــخوځول**:- (ـــخ+د) ز+و+ل) مجازاً ګډېدل، کُنه خوځول.

**کناخه**:- (ک+نا+خَ) (اس، مو، ج ـــخې) یو قسم غټ کارغهٔ، کېه مرغۍ، کېه ورغوه.

**کنار**:- (ک/کَ+نا+ر) (ف، اس، مذ) غاړه، ژۍ (جي) څنډه، حاشیه (اصلاً د ک زور سره ,, کَنار،، دے. خو په پښتو کښې عموماً د کاف زبر سره وائي).

همره اوښــکې مې بهــېږي پـه رخسار
چې غرقاب مې هم ګریبان دے هم کنار (رحمان)

**ــــــوبوس کول**:- د خپل محبوب سره یو ځاے کېدل او چیچې کول.

چې وئهٔ کاندې شاهد کنار و بوس
نتیجه به ئې له حسن وي افسوس (حمید)

**درـــــ**:- (د+ر ــــــ) (ف، تر، تف) یو طرف ته.

**همـــــ**:- (هـ+م ــــــ) تر غاړه، غاړه غټي، غاړه غړۍ.

**همـــــکول**:- تر غاړه ایستل، تر غاړه باسل، غاړه غټي کول.

**همـــــکېدل**:- تر غاړه وتل، غاړه غټي کېدل.

**کنار**:- (ک+نا+ر) (ف، اس، مذ) ترخ، بغل، غېږ.

**کناره**:- (کَ+نا+رَ) (وـــــ کنار)

**ــــــساتل**:- یو طرف ته ساتل، بچ ساتل.

ځـان کـناره وسـاتـه حافظه له دې خلکو
څوک چې په ریا څرګندوي خپل عبادت (حافظ)

**ــــــکش**:- (ـــــک+ش) (ف تر، صف، مذ، مو ـــــ ه) یو طرف ته، یوې ډډې ته، په ډډه، یو غاړې ته.

**ــــــکش کېدل**:- (۱) یو غاړې ته کېدل، یو ډډې ته کېدل، (۲) له خلکو جدا کېدل، له خلکو څخه یوې ډډې ته کېدل. تعلق پرې کول. ګوښه نیول (۳) د کوم کار نه لاس اخیستل.

**ــــــکول، ځان**:- یو ګوښه کېدل، په ډډه کېدل،

د تدبیر توره ئې کښېښوه په کندو کښې
دا د ے ځــان مې لـه عــالمه کنــاره کړ ! (خوشحال)

**ــــــکېدل**:- یو غاړې ته کېدل، په ډډه کېدل، یو طرف ته کېدل، یو اړخ ته کېدل.

**ــــــګیــري**:- (ــــــــګـي+ري) (ف، تـر، اس، مــو) ګوښه نیونه، یوې ډډې ته کېدنه.

**ــــــنیول، چا څخه**:- چا نه په ډډه کېدل، ډډه کول چا نه ګوښے کېدل د چا څخه.

**ځان ـــــنیول**:- یو ګوښه کېدل، یو ډډې ته کېدل، ګوښه نیول.

**ګوښه او ـــــژوند تېرول**:- ځان یواځې ژوند تېرول، د خلکو نه یوې ډډې ته اوسېدل.

**کنارے**:- (کُ/کو+نا+رے) (اس، مذ) قصاب، غوښه خرڅولو واله.

**کنـاس**:- (ک+ن+نـا+س) (ع، اس، مـذ، مـو ـــــ ه) چوهـاړے، چـواړے، مهتر

دُر چې قیمت ناک دي په دربار شاهانه کښې
قدر به ئې ورک شي که ئې یوسي څوک کناس ته (حافظ

**کناسکے**:- (ک+نا+س+کے) (اس، مـذ، ج ـــــ کي) د مرغـو د نیولـو اوسپنیز دام.

**کناسي**:- (ک+ن+نا+سي) (اس، مو) چوهړتوب، چواړي توب.

**کنال**:- (ک+نا+ل) (اس، مذ، ج ـــــ ونه) د زمکې د کچ یوه پېمانه ده. د شلو مرلو یو کنال وي. او د څلورو کنالو یو بیګه یا جرب.

(عموماً جمع ,, کناله،، کولے شي لکه شل کناله)

چې په زمکه دې سکون دے هسې کر کړې
د کنـــال حـاصــل بــه واخلې لــه جریبه (اخون ګدا)

**کنال**:- (کُ+نا+ل) (اس، مذ، ج ـــــ ونه) د خاورو لوے کنډول، د لاندې نه غونډ ښانکے، پرات.

**کنال**:- (ک+نا+ل) (انګ اس، مذ) نهر

**کنام**:- (ک+نا+م) (ف، مذ) (۱) د حیوانـاتو د تـود آرام ځـاے (۲) د مرغو مارغانو جاله (۳) ځنګل، ورشو، چراګاه.

**کنامکه**:- (ک+نا+م+کَ) (ق، اس، مو، ج ـــــ کې) د مرغــو د نیولــو اوسپنیز دام.

**کناوېز**:- (ک+نا+وې+ز) (اس، مذ) یو قسم قیمتي رېښمین ټوکے.

**کنایت**:- (ک+نا+ي+ت) (ع، اس، مذ، ج ـــــ ونه) کنایه، په اشاره او رموز کښې خبره مبهمه خبره، په پټه طریقه خبره کونه.

ستم دې د عینو یـاره عین عنایت دے
بند دې د زلفو، د خلاصي کنایت دے (خوشحال)

**کنایه**:- (ک+نا+يَ) (ع، اس، مـو، ج ــــــ ې) (۱) اشاره، ایمـا، رمـز، مبهمـه خبـره (۲) د تشبیه یوه طریقه ده. چې یو څیز لـه بـل څیـز سره تشبیه ورکړي خو ,, مشبه،، نهٔ ښکاره کوي. بلکې د مشبه بـه نـه کـار اخستے شي. پیچمے، زونګه، کړنج، (۳) (صرف) هر کله چې ویونکے څهٔ خبره ښکاره نهٔ کړي او په یو دوه لفظونو مبهمه خبره وکړي نو ورتـه کنایـه وائـي. لکـه هغـه دغـه څیزونـه مې واخستل، لکه داسې مې هم وکړل هغسې مې هم وکړل.

**پهـــــکښې خبرې کول**:- په رموز کښې خبرې کول. مبهمې خبرې کول. په اشارو خبرې کول.

**کنایهٔ** :- (ک + نا + ي + ت + ن) (ع ، تف) د کنائې په طور ، په اشاره یا رموز کښې په مبهمه طریقه ، غېر واضح الفاظو سره.

**کنائې** :- (ک + نا + ئې) (۱) د ,, کنایه ،، جمع ده .(۲) د ,,کنایه ،، اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل.

**اشارې ـــــ** :- (ا + شا + رې ـــــ) (فپ ، تر ، اس ، ج) مبهمې خبرې ، غېر واضح بیان ، د رموز خبرې.

**د ـــــ نه کار اخېستل** :- مبهمه خبره کول. د غرض یا د مقصد د ښیز نوم نه اخېستل او په مبهمه طریقه خپل مقصد یا غرض څرګندول.

**کن پره** :- (ک + ن + پ + رَ) (صف) کوږ طرف ، وروستو

شارې تل په کن پره ګرځي خوشحاله

لـړنی لیـنـدی بـه څي پـه سرپره (خوشحال)

**کنپل** :- (ک + ن + پ + ل) (اس ، مذ) د چا د قدم د پل اولنې سُراغ.

**کنټرول** :- (ک + ن + ټ + رو + ل) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) په قابو کښې راوستل یا لرل ، په یو مقرر ځای کښې را ایسارول ، مخ نیول ، سمبالول.

**کنټرول**:- (ک + ن + ټ + رو + ل) (انګ ، اس ، مذ) ضبط او تصرف ، په قبضه او قابو کښې ساتنه ، پلال.

**ـــــ کول**:- په قابو کښې ساتل ، په کوم ټاکلي ځای کښې را ایسارول ، سنبالول.

**ـــــ کېدل** :- په قابو کښې راتلل ، په مقرره ځای کښې را ایسارېدل.

**د ټرېفک ـــــ** :- په سړکونو باندې د خلکو او د لارو موټرو وغېره د چلن په قابو کښې لرنه.

**کنټرولر** :- (ک + ن + ټ + رو + ل + ر) (انګ ، اس ، فا ، مذ ، ج ـــ ان) (۱) کنټرول کوونکی ، په قابو کښې ساتونکی ، په کوم خاص ټاکلي ځای کښې را یساروونکی .(۲) د بجلۍ (برق) جریان په قابو کښې ساتونکې آله.

**کنټرولر** :- (ک + ن + ټ + رو + ل + ر) (انګ ، اس ، مذ ، صف، ج ـــ ان ، مو.ه) په قابو یا ضبط کښې ساتونکی ، کنټرولر ، پلانګر ، پلالی.

**کنټرولي** :- (ک + ن + ټ + رو + لي) (انګ پ تر ، اس، فا ، ج ـــ ان) کنټرول کښې ساتونکی ، په قابو کښې ساتونکی.

**کنټکي** :- (ک + ن + ټ + کي + ن) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) سپن سین ، د سپن سو نه جوړ شوی د سپن سو څخه ساز شوی سوتي ، سنۍ ، رسۍ ، سوترای.

**کـنـج** :- (ک + ن + ج) (ف ، اس ، مذ) (۱) لاهـو ، لاپـو ، ډوزمـار ، ډوزی ویشتونکی ، دوړن ، دوزن ، باډوګر (۲) مغروره ، غاوره ، کبرجن.

**کنج** :- (ک + ن + ج) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ناز ، ادا ، کېځ مکېځ ، کیـز مکېز ، عشوه.

**ـــــ کول** ناز و ادا کول ، کېځ کول ، ناز نخره کول.

**کنج** :- (ک + ن + ج) (ف اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ګټ ، ګوټ ، ګوشه

نشته جمعیت ارام پـه کُنج پـه خـلوت کښې

ځای د امن کوم دی خلاص به چېرته شي مفتون (حافظ)

**ـــــ په کنج وهل** :- یو اړخ ته او بل اړخ ته ګذارول.

ستر ګې د مستان دي زمـا زړهٔ ښیښه مهینه

پروکې پروکې مه شه چې ئې کنج په کنج وهینه (خوشحال)

**ـــــ د خلوت** :- د خلوت ګوشه.

زاهد خوښ کنج د خلوت کړ

عـاشق خـوښ د یـار بالا (خوشحال)

**ـــــ قناعت**:- (ـــ ق + نا + ع + ت) (عف ، تر ، اس ، مذ) د قناعت ګوټ ، د صبر کوټ.

**کنج** :- (ک + ن + ج) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) کُبړې ، کړوپ.

**کنج** :- (ک + ن + ج) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) جنګۍ ، چېرته چې یو ځای ګڼې ونې وي.

**کنجاره** :- (ک + ن + جا + رَ) (اس ، مو ، ج ـــ رې) (۱) پوک ، بُوس ، کنجاره

(۲) کل ، د زېږ پوک چې تېل ترې په ګانۍ کښې وبستلی شوي وي.

**کنجاره**:- (ک + ن + جا + رَ) **کنجاله** :- (ک + ن + جا + لَ) (ف ، اس ، مو ، ج ـــ رې / لې) (۱) کهل ، هغه کلک بوس چې د شړشمو وغېره نه د تېل ایستلو نه پس پاتې شي .(۲) مجازاً بېکار ښیز ، تش بوس.

**کنجاړه** :- (ک + ن + جا + ړَ) (و ـــ کنجاره)

**کنجپـور** :- (ک + ن + ج + پـو + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) کښې کبر ، چونګاښ (سرطان).

**کنجپوړ** :- (ک + ن + ج + پو + ړ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) کوني کبر ، خرچنګ ، سرطان.

**کنجخور** :- (ک + ن + ج + خو + ر) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) کم خور ، لږ خوراک کوونکی.

**کنجد** :- (ک + ن + ج + د) (اس ، جم) کونزلې ، کونځلې

**کنجد** :- (ک + ن + ج + د) (ف ، اس ، جم) کونځلې ، کنځله.

**کنجر** :- (ک + ن + ج + ر) (اس ، صف ، مذ ، ج ـــ ان) (۱) ډم ، د ډمو بروا (۲) بې حیا ، بې شرمه سړی (۳) کمتیه ، بد ذاته ، (په هند کښې یوه کم ذاته قبیله ده) (۴) د کنځلو په طور استعمالېږي.

**کنجرخ**:- (ک + ن + ج + ر + خ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د اوبو بند ، ډ ب ، تړه

**کنجره**:- (ک + ن + ج + رَ) (ه پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ رې) د ,, کنجر تانیث

**کنجـری**:- (ک + ن + ج + ر + ی) (هـ پ ، تـر ، اس ، مو) (۱) ډمه ، فاحشه ، نڅنۍ ، لولۍ ، رنډۍ ، ګډېدونکې بازاري ښځه (۲) د کنځلو په طور استعمالېږي .(۳) بې حیا ښځه ، بې شرمه.

**کنجرې** :- (ک + ن + ج + رې) (اس ، ج) د کور اړخونو ته ، یا د کتاب په سر کښې نقش.

**کنجړ** :- (ک + ن + ج + ړ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) برستن ، شیرک ، کنزړ ، تولیه ، نالۍ.

**کنجـړان**:- (ک + ن + ج + ړا + ن) (اس ، جم) بغـوتې ، اډي بغـوتې ، د مرۍ غدود

**کنجغرے** :- (ک + ن + ج + غ + رے) (صف ، مذ)

د کنډ یو قسم ، د پلوسې چیړ ، یو ازغن بوټی ، یوه برخه لوګی ، درې بخې د پلوسې کنجغرے کنډ سره ګډ کا .(دستارنامه)

**کنجغوت** :- (ک + ن + ج + غو + ت) یا :- (ـــــ غ + وو + ت) (اس ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) تنګ تاریک ځای ، توره تیارهٔ کوټه .(۲) هغه ځای چې پولیس واله په کښې هغه ښاروي بندوي. کوم چې د چا په فصل کښې په څرنه نیولی شوي وي .(کانجي هاوس)

**کنجغود** :- (ک + ن + ج + غو + د) (و ـــ کنجغوت)

**کنجـک** :- (ک + ن + ج + ک) (اس ، مذ) (۱) ګلګوتي وېښتهٔ ، ګړګوتې وېښتهٔ ، کجک (۲) تاو راتاو.

**کنجـک** :- (ک + ن + ج + ک) (اس ، مذ) هغه اوږد لرګی چې سر ئې کوږ او پنجه دار وي. په غوبل کښې پرې بوس وغېره راکاږي. بوګر

**کنجک**: - (ک + ن + ج + ک) (و ــــ کنجکه)

**شین خالے**: -ــــ (شي + ن + خا + لے ــــ) (پ تر ، اس ، مذ) هغه غټه کونجکه چې په کانې مبتلو سره پرې شنهٔ خال (یا خالونه) جوړ کړے شوي وي۔

**للوــــ**: - (ل + لو ــــ) (پ تر ، اس ، مذ) غټه او اوږده کونجکه۔

**کنجکاوي**: - (ک + ن + ج + کا + وي) (ف ، اس ، مو) لټون ، څېړنه ، تحقیق۔

**کنجک دار**: - (ک + ن + ج + ک + دا + ر) (اس ، صف ، مذ) د مارانو یو قسم ، چې پرې د کنجکې په شان ټاکي وي۔

**کنجکو**: - (ک + ن + ج + کو) د ,, کونجکې ،، (جمع) اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل۔

**کنجکــه**: - (ک + ن + ج + کَ) (اس ، مو ، ج ــــ کې) (۱) خرموره ، د سمندري چینجو کور۔ چې خالي شي نو بیا پرې ماشومان لوبې کوي۔ (اُر ــــ کوړی) (۲) کونجکې به ډېرې ارزانې خرڅېدې ځکه مجازاً ډېر معمولي او کم قیمته یا بې قدره څیز۔

**ــــ سمه پر بوتل**: - د کونجکو په لوبه کښې چې جینکۍ د ملګرو کونجکې د لاسه په مېدان وغورزوي۔ نو ځینې سمې پرې ووزي یعنې کُب واله طرف ئې پورته وي او سوري واله ښکته په زمکه لګېدلے وي۔

**په پښو کښې دې ــــ (ده)**: -(جمله) د نظر ماتې دپاره وئیلے شي۔ هر کله چې څوک د چا صفت وکړي نو بل ورته زر دغه جمله ووائي۔ چې د نظره نهٔ شي۔

**په ــــ**: - په هېڅ ، چې هېڅ بها نهٔ لري۔ عبث

د دې بـــاغ ګلونه واړه ښائسته دي

چې همېش ئې بقا نشته په کنجکه (خوشحال)

**چکـۍ ــــ**: - (چ + ک + ۍ ــــ) (پ ، تر ، اس ، مو ، ج ــــ ې) هغه کونجکه چې تکه سپینه وي او دپاسه ټاکۍ ئې د تور په ځاے زیړ شان رنګ لري۔

**سـورۍ ــــ**: - (سو + ر + ۍ ــــ) (پ تر ، اس ، مو ، ج ــــ کې) (۱) هغه کنجکه چې کوب واله سر ئې په کانې باندې مبتلے شوے وي او سورے په کښې جوړ شوے وي۔ (۲) مجازاً هغه څیز چې هېڅ قدر و قیمت نهٔ لري۔

**کنجکے**: - (ک + ن + ج + کے) (اس ، مذ ، ج ــــ کي) د ستنې یو قسم۔

**کنجکے**: - (ک + ن + ج + کے) (اس ، مذ ، ج ــــ کي) د کږ غشي هډوکے ، د کرغشي هډوکے ، کجکے۔

**کنجکے**: - (ک + ن + ج + کے) (اس ، مذ ، ج ــــ کي) د هاتیانو د شړلو اله ، کږکے ، چنګ۔

**کنجلک**: - (ک + ن + ج + ل + ک) (صف ، مذ ، مو ــــ ه) (۱) تاو راتاو (۲) ګلګوتے ، ګړګوتے۔

**ــــ توب**: - (اس) پیچېدګي

**کنجن**: - (ک + ن + ج + ن) (صف ، مذ ، مو ــــ ه) دل ، غټ غټ ټکولے ، دل کړے۔

**ــــ واله**: - (ــــ وا + لَ) (اس ، مو ، ج ــــ لې) ناز نخرو واله ،

**کنجورے**: - (ک + ن + جو + رے) (پ اس ، مذ) ډکے ، بوټے لکه: توئے وړے د کنجوري وته هم لاس اچوي۔

**کنجوړه**: - (ک + ن + جو + ړَ) (و ــــ کنجاره)

**کنجوس**: - (ک + ن + جو + س) (صف ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) شوم ، هغه سړے چې پیسې ټکې نهٔ خرڅ کوي۔ پیسه چوت۔

**کنجوسي**: - (ک + ن + جو + سي) (هـ ، اس ، مو) شومتیا ، خست ، شوم والے

**کنجوغه**: - (ک + ن + جو + غَ) (اس ، مو ، ج ــــ غې) هغه کځوړه یا رومال چې په کښې جامې وغېره اچولې یا تړلې وي او د زین شاته تړلے شي۔

**کنجوکه**: - (ک + ن + جو + کَ) (و ــــ کنجکه یا کونجکه)

ژړوې مې د رقیب پــه خاطر ولې

په کنجوکو د دې دور خرید مه کړه (حمید)

**کنجول**: - (ک + ن + ج + و + ل) (مص) (۱) قدرمن کول ، د کوم څیز قدر قیمت زیاتول ، درنول۔ (۲) ناز کول ، د کوم څیز په ورکولو کښې ناز نخرې کول۔

**کنجولے**: - (ک + ن + ج + و + لے) (اس ، مف ، مذ ، ج ــــ لي) په قدر کړے ، درون کړے۔

**کنجونه**: - (ک + ن + ج + و + نَ) (حمص) (۱) پـه قـدر کونـه ، قـدر زیاتونـه ، درنونه (۲) نازنخرې کونه

**کنجوونکے**: - (ک + ن + ج + وو + ن + کے) (اس ، فا ، مذ ، ج ــــ کي) (۱) په قدرکوونکے ، قدر زیاتوونکے ، درنه وونکے۔ (۲) نخرې کوونکے۔

**کنجي**: - (ک + ن + جي) (هـ ، اس ، مو ، ج ــــ ۍ / انې) (۱) چابي ، د جرندې وغېره د لرې کولو اله ، کلید۔ (۲) د ګړۍ ، ساعت وغېره هغه حصه چې په تاوؤلو سره ئې کمانۍ چورلې۔ لکه: ګړۍ لـه کنجي ورکول۔ (۳) په کوم کار کښې د کامیابۍ ذریعه۔

**کنځا**: - (ک + ن + (د) زا) (اس ، مو ، ج) کنځل ، زیاړې ، زیږې ، ښکنځا ، ښکنځنه۔ (ځینې خلک ئې جمع ,, کنځاوې ،، کوي)

قند و ګل چې یادوم مقصد مې دا دے

څــو بــوسې که له کنځا سره منبع کړې (خوشحال)

**ــــ کول**: - کنځل کول ، زیږې کول۔

**کنځرې**: - (ک + ن + (د) ز + رې) (اس ، مذ ، ج ــــ رې) مشهوره دوائي ده۔ چې عموماً په جلابو کښې پکارولے شي۔ سپین رنګ لري۔ (ف:شیر خشت)

**کنځکے**: - (ک + ن + (د) ز + کے) (اس ، مذ ، ج ــــ کي) د کوچیانو د تنبو (کېږدۍ) هغه لوے افقي تیر چې دپاسه پرې نور د کمان په شان کاږهٔ لرګي اچولے شي۔

**کنځل**: - (ک + ن + (د) ز + ل) (مص) کنځل کول ، چاته ، زیږې کول ، کنځا کول

**کنځل**: - (ک + ن + (د) ز + ل) (اس ، جم) زیږې ، ښکنځا ، کنځا ، کنځاوې هغه خولهٔ چې مشهوره په نمانځل وه

وئې نه نمانځهٔ زما په دوه کنځل زړهٔ (علي خان)

د واحد په طور هم استعمالېږي۔ لکه: - تهٔ یو کنځل خو راته وکړه۔

**کنځل**: - (ک + ن + (د) ز + ل) (و ــــ کنځول)

**کنځله**: - (ک + ن + (د) ز + لَ) (اس ، مو ، ج ــــ لې) د کنځل تانیث دے۔ ځینې وخت د ,,کنځل ،، (اسم) په ځاے استعمالېږي۔

**کنځله**: - (ک + ن + (د) ز + لَ) (اس ، مو) د فصلي کال د یوې میاشتې نوم۔ چې د جنورۍ فرورۍ میاشت تر مېنځه وي۔ ,, مګر ،،

**کنځله**: - (ک + ن + (د) ز + لَ) (اس ، مو ، ج ــــ لې) مشهور غوړزنې۔ چې تېل ترې وښکے شي۔ کنجد (عموماً د جمعې پـه شکل کښې استعمالېږي)

د صحبت اثــر مې ولیـدهٔ په خپله

پــه تاثیر د ګل فلبل کاندې کنځله (خوشحال)

**کنځلې**: - (ک + ن + (د) ز + لې) (اس ، مو ، ج) د ,, کنځله ،، جمع ده۔

**ــــ کول**: - کنځل کول ، زیاړې کول ، کنځاوې کول۔ ښکنځا کول۔

وائې تا وته به وکړم اوس کنځلې
لا به کله دا نبات په ما پېرزو کړې (خوشحال)

**کنځلې** :- (ک + ن + (د) ز + لې) (اس ، جم) یو بوټے دے چې د اوربشو په فصل کښې کېږي -زیړ ګلونه لري .د دې تخم د غنمو سره یو ځاے وریتولے او خوړے شي-

**کنځلے** :- (ک + ن + (د) ز + لے) (اس ، مف ، مذ ، ج ـــــ لې) کـــنځلے شوے ، هغه چې زیړې ورته شوې وي-

**کنځنه** :- (ک + ن + (د) ز + نَ) (حمص) ښکنځا کونه ، کنځا کونه ، کنځل کونه

**کنځوره** :- (ک + ن + (د) زو + رَ) (اس ، مو ، ج ـــــ رې) یو قسم بوټے دے - چې د ګېډې د چینجو وغېره دپاره د دارو په طور استعمالېږي -

**کنځول** :- (ک + ن + (د) زو + ل) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) بالاپوش

**کنځونکے** :- (ک + ن + (د) زو + ن + کے) (اس ، فا ، مذ ، ج ـــــ کي) کنځل کوونکے ، ښکنځا کوونکے ، کنځا کوونکے -

**کنځه** :- (ک + ن + (د) زَ) (۱) و ـــــ کنځنه (۲) د ,, کنځل ،، مصدر تـه د ماضي صیغه- لکه : وئې کنځۀ-

**کنځه** :- (ک + ن + (د) زَ) (اس ، مو ، ج ـــ ځې) هغه ګوته چې کټې ګوتې سره جخته وي-لاګو ، لکړه ، مسواکۍ ګوته ، د شهادت ګوته-

**کنخړ** :- (ک + ن + خ + ړ) (اس ، مذ) کنګخړي ، هغه لرګي او خس و خاشاک چې په سېلاب کښې راځي-

**کند** :- (ک + ن + د) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د فقیرانـو څـادر ، چـې د مختلفو قسمونو او رنګونو د زړو چیرړو یا ټوکړو نه جوړ شوے وي - ګودړۍ-

ـــــ**پوش** :- (ـــــ پو + ش) (ف تر ، اس ، صف ، مذ ، ج ــ ان) هغه سړے چې کند (د فقیرانو څادر) ئې اغوستے وي-فقیر ، ملنګ-

ـــــ**(دو) کچکول** :- (ـــــ (دو) ک + چ+ کو+ل) (پ تر ، اس ، ج) کنـــــد او کچکول دواړه د فقیرانو ملنګانو څیزونه دي-د فقیر سرې مال اسباب یا ضرورت

ـــــ **کچکول، پـه غـاړه کـول** :- فقیر جوړېدل ، ملنګ کېدل ، د فقیرانو ملنګانو هسې ژوند اختیارول-

**د سپېرې دپاره ـــــ سوځول** :- د معمولي شان فائدې دپاره ډېر لوے نقصان کول-یا د معمولي شان عارضي فائدې دپاره د لوئې مستقلې فائدې نه لاس وینځل-

**کند** :- (ک + ن + د) (اس ، مذ) (۱) د ,, کنده ،، تذکیر ، ډوغل ، خندق ، ټانګ (عموماً د تانیث په شکل کښې معنې ,, کنده ،، استعمالېږي) (۲) درز ، شګاف-

**ګند** :- (کُ + ن + د) (ف ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) پس ، چې تېرۀ نۀ وي-پڅ-

ـــــ**ذهن** :- (ـــــ ذ + ه + ن) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) پڅ ذهن واله ، یعنې په زده کړه کښې پڅ وي-(چې څۀ نۀ شي زده کولے)

**کنداخ** :- (ک + ن + دا + خ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) ټوپک هغه لرګینه برخه چې په کښې کوترې ، قولنګ او شپېلۍ وغېره لګېدلې وي -او اخرې پلنه بـرخه ئې د ډز په وخت اوږې سره لګولے شي-

**کندازه** :- (ک + ن + دا + زَ) (اس ، مو ، ج ـــــ زې) د شرابو وغېره د څښکلو پیاله ، کاسه-

**کنداغ** :- (ک + ن + دا + غ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د ټوپک لرګینه برخه ، چې اوږې ته لګولے شي - کنداغ ، د کاف زور سره هم لیکلے شوے دے) -

**کندال** :- (ک + ن + دا + ل) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د ټوپک د دارو ځاے ، (اتش خانه) -

**کنـدروښ** :- (ک + ن + د + رو + (ت) س) (ف ، اس ، جـم) ځنګلـې اوربشـې ، اوربشې ، کندروس (ف : کندروس)

د کندرو څـو دوه درهمه
بیل بیل اس کړه دا همدمه (خوشحال)

**کندروزے** :- (ک + ن + د + رو + زے) (پ تر ، اس) یو مرض دے چې سړے هر څۀ چې خوري نۀ پرې مړېږي-

**کنـدروزے** :- (کو / ک + ن + د + رو + زے) (اس ، مـذ) یو مـرض نـوم دے - چې مریض په کښې ډېر زیات اوږے کېږي- (ع : جوع البقر)

**کندروس** :- (ک + ن + د + رو + س) (و ـــــ کندروښ)

**کنـدره** :- (ک + ن + د + رَ) (اس ، مـو ، ج ـــــ رې) د ,, کنـده ،، بـدل شـکل دے -عموماً هغې ډوغل ته وائي چې اوږد وي او په پلن والي کښې کم وي-مطلق کنده او ژور (جور) ځاے -

**کندرے** :- (ک + ن + د + رے) (ق ، اس ، مذ) هوار مېدان-

**کنـدرے** :- (ک + ن + د + رے) (اس ، مـذ ، ج ـــــ ري) (بـل) دسترخوان ، رڼګے -

**کندغالے** :- (ک + ن + د + غا + لے) (اس ، مذ ، ج ـــــ لي) هغه ډوغل یا کنده شان چې اکثره د اوبو په بهېدلو جوړه شي-کنده ، کندره-

**کندکے** :- (ک + ن + د + کے) (اس ، مذ ، ج ـــــ کي) رېښمو د نقش یـو قسم چې د زنانۀ ؤ د څادرونو په پلوونو جوړولے شي-

**کندل** :- (ک + ن + د + ل) (پ ، مص) کنستل - چې بل ته کوهے کني په خپله ور پرېوزي- (متل)

**کنـدو** :- (ک + ن + دو) (ق ، اس ، مـذ ، ج ـــــ ګـان) د غلې د کښېښـودلو ځاے -انبارخانه په فارسۍ کښې هم کندو وائي-د دې ډېر قسمونه دي -چې د لوښې ، میزرې ، لرګي او خاورو ختو نه جـوړولے شي-پنـډېړے ،ترټه ، کاتره (قندهار) ، پنډوره (اورکزي) کـړک (وردګ) کـوټے (باجوړ) جلتې بمبولے (سمت شرقي) کمبه ، خمبه ، کولۍ ، ببولۍ ، کمزد وغېره-

**کندو** :- (ک + ن + دو) (ف ، اس ، مـذ) (۱) هغـه لـوے خـاورین خُم (خاورینه چاټۍ) چې په کښې غله کښېښودے شي- (۲) پـه پښـتو کښـې د خاورو ، خښتو وغېره نه جوړ شوے د غلې د کښېښودو ځاے ته وائي-

**پـه ـــــ کښې کښېښودل** :- کنایه ده-هېرول ، فراموشه کول-

د تدبیر توره ئې کښېښوه په کندو کښې
دا دے ځـان ئې لـــه عـالمه کناره کړ (خوشحال)

**د ـــــ شاته ژړل (جړل)** : پټ پټ ژړل ، د خلکو نه پټه ژړا کول
لکه : د غـل مور د کندو په شا ژاړي- (متل)

**نوم پـه ـــــ کښې نۀ ځائېدل** :- لـوے نوم لرل ، ډېر شهرت لرل - عموماً طنزاً وئیلے شي-لکه د فلاني نوم په کندو کښې نۀ ځائېږي)

**کندو** :- (ک + ن + دو) د ,, کندې ،، (جمع) اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل-

**پـه ـــــ سر کېدل** :- په غلطه یا ګرانه لار روانېدل-ته په کومو ـــــ سر شوې ؟ (جمله) څوک چې د چا په خبره پوئې نۀ شي نو غلط یا بدل مطلب ترې واخلي-نو د تنبیه دپاره ورته وئیلے شي-یعنې تا غلط مطلب واخست- یا تۀ په غلطه روان شوے ئې-

**ځان پـه ـــــ اچول** :- (و ــ ځان کندې ته غورزول)

**کندورے** :- (ک + ن + دو + رے) (صف) مانده ، ډنګر ، (د چاخ ضد)

**کندوړی:** - (ک + ن + دو + ړ + ی) (اس ، مو ) د ,, کنده ،، تصغیر دے ۔وړه کنده وړوکې کندره۔

**کندوړے:** - (ک + ن + دو + ړ + ے)(اس ، مذ ،ج ـــ ړي)مات شوے خاورین لوښے

**کنده:** - (ک + ن + دَ)(اس ، مو ، ج ـــ کندې) کنستلے شوے ځاے ، ډوغل

که دوه کندې زر لري دربمه غواړي

مړیدهٔ د ګور په خاک د معنا جر شي (حافظ)

**ـــ کار:** - (ـــ کا + ر)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه کس چې په لرګي وغېره کنبې په کنستلو ګلونه وغېره جوړوي۔

**ـــ کاري:** - (ـــ کا + ري)(ف تر ، اس ، مو)په لرګي کاڼي وغېره کنبې د کنستلو کار ، حکاکي ، منبت کاري۔

**کنده:** - (ک + ن + دَ)(ف ، اس ، مو)(۱) د لرګي غټه او لنډه ټوټه ، د ونې تنه ۔ غټه د ونې تنه چې په کنبې سوري وي او د قېدیانو پښې په کنبې بندوي چې اونهٔ تښتي۔(۲) د ټوپک لرګینه برخه (۲) د سپارې کُنده یعني د قلبې د سپارې لرګے۔

**کندهار:** - (ک + ن + د + ها + ر)(اس ، مع)د ,, قندهار ،، بدل شکل دے ۔د افغانستان سهېل طرف ته مشهور ښهر او صوبه ده۔

**کندي:** - (ک + ن + دي) (۱) د ,, کندے ،، جمع ده۔ (۲) د ,, کنـــــدے ،، اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل۔

**ـــ په کندي:** - (ـــ پ + ک + ن + دي)(پ تر ، ظر)د یو کندي نه بل کندي ته۔په هر یو کندي کنبې۔

**ـــ وال:** - (ـــ وا + ل) (پ تر ، صف ، مذ ، ج ـــ ان)د یو کندي اوسېدونکے ، د یو چم استوګن ، هم محله۔

**ـــ واله:** - (ـــ وا + لَ) (پ تر ، اس ، صف ، مو ، ج ـــ لې)د ,, کندي وال ،، تانیث دے۔

**کندي:** - (ک + ن + دي)(اس ، مو) د یوې قبیلې نوم۔

**کندې:** - (ک + ن + دې)(اس مو ، ج )(۱) د ,, کنده ،، جمع ده ۔(۲) د کنده اضافي مجروري وغېره (متغیر) شکل۔

**ـــ ته لوئېدل:** - مجازاً غلط کار کول۔د غلط کار په وجه نقصان موندل ، غلطه لاړ اختیارولو سره ضرر موندل۔

**ـــ کپرې:** - (ـــ ک + پ + رې) (پ تر ، صف) لـــــوړې ژورې (جورې) ناهمواره زمکه لوړه ژوره (جوره) زمکه ، هغه زمکه یا مېدان وغېره چې هوار نهٔ وي۔

**ـــ کرونډې** (ـــ ک + رو + ن + ډې)(پ تر ، اس ، ج)(۱) لوړې ژورې (جورې) (۲) وراني ویجاړې۔

**ـــ کونډې:** - (ـــ کو + ن + دې)(و ـــ کندې کوندرې)

**ځان ـــ ته غورزول:** - غلط کار کول ، غلطه طریقه یا لاړ اختیارول ، په خپله خپل نقصان کول۔

**کندے:** - (ک + ن + دے)(اس ، مذ ، ج ـــ دي)چم ، محلت ، د کلي یوه برخه چې عموماً د یو مشر (ملک) په ولقه کنبې وي۔

**کندېسے:** - (ک + ن + دي + سے)(اس ، مذ ، ج ـــ سي) د ســـپرلي یـــا د اوړي د تېرولو کور۔

**کندیل:** - (ک + ن + دي + ل) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه)د ,, قندیل ،، بدل شکل دے۔(و ـــ قندیل)

**کندېل:** - (ک + ن + دې + ل) (اس مذ ، ج ـــ ونه) لوے خاورین طباخ ، کونډې ، ښهنک ، خانک۔

**کندېل:** - (ک + ن + دې + ل)(اس ، مذ ، ج- ونه) ژوره (جوره) کنده ، لویه کنده

**کنډ:** - (ک + ن + ډ)(اس جم) چیر ، صمغ عربي مشهوره دوائي ده ۔چې د ځینو ونو په تنو کنبې پېدا کېږي ۔د دارو نه علاوه د سلېښ (ګوند) د جوړولو دپاره هم پکارولے شي۔

**کنډ:** - (ک + ن + ډ)(اس ، جم) چیني ، قند۔

**کنډ:** - (ک + ن + ډ)(اس ، جم)د نوې لنګې شوې غوا یا مېښې د اولنو دوو درو ورځو ټینګ پے ، واردهٔ ،ورېږهٔ ، کنډاتے۔

**کنـډ:** - (ک + ن + ډ)(اس ، مـذ )کنـده ، ژوره (جـوره)(یـواځې کـم کـوز استعمالېږي، عموماً ,, کپر ،، سره یوځاے راځي)

**ـــ کپر:** - (ـــ ک + پ + ر) (پ تر ، صف) هغه ځاے چې هوار نهٔ وي ۔کندرې کوندرې ، لوړ ژور (جور)۔

**ـــ کپر کول:** - یو ځاے (کنستلو سره) لوړې ژورې (جورې) کول ۔ ناهمواره کول۔کندرې کوندرې جوړول۔

**ـــ کپر کېدل:** - په یوځاے کنبې لوړې ژورې (جورې) جوړېدل۔د زمکې ناهمواره کېدل ، کندرې کوندرې کېدل۔

**کنډ:** - (ک + ن + ډ)(اس ، صف ، مذ ) هغه سړے چې ښځه ئې مړه شوې وي۔ (اصلاً دا لفظ ,, کنډه ،، دے چې د ښځې دپاره استعمالېږي۔په دغه مناسبت ترې نه د مذکر صیغه (کنډ) جوړه شوې ده)۔

**کنډ:** - (ک + ن + ډ)(سابقه) سابقه ده ۔نورو الفاظو نه وړاندې راځي ۔او د کنډتوب معنٰی ورکوي۔

**ـــ تون:** - (ـــ تو + ن)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه)د ښځې هغه عمر چې د خاوند د مرګ نه پس بغېر د خاونده تېروي۔

**ـــ والے:** - (ـــ وا + لے)(اس ، مذ) بغېر د ښځې ژوند ، (د ,, کونډتون ،، په مقابله کنبې استعمالېږي)

**په ـــ تون کنبې سر سپینول:** - د خاوند د مرګ نه پس ټول عمر وادهٔ نهٔ کول۔بې خاونده زوړ عمر ته رسېدل۔

**ګنډ:** - (ک + ن + ډ)(اس ، مع) نوښهر نه لږ وړاندې نمرخاتهٔ طرف ته د لنډي سیند په غاړه د سېل ځاے۔

**کنډا:** - (ک + ن + ډا)(اس ، صف ، مذ )(۱) هغه غواے چې ښکر ئې مات شوے وي۔ (۲) هغه کس چې شونډه ئې پرېکړے شوې یا شلېدلې وي۔

**کنډاتے:** - (ک + ن + ډا + تے)

**کنډاتي:** - (ک + ن + ډا + تي)(اس ، جم) د نوې لنګې شوې غوا یا مېښې د اولنو دوو درو ورځو پے چې ډېر ټینګ وي ۔او واردهٔ ترې جوړولے شي، کنډ ، واردهٔ۔

**کنډازه:** - (ک+ن+ډا+زَ)(اس ، مـو ، ج ـــ زې) پیالې،دچائیودڅښـکلوپیاله ، کوپ

**کنډاس:** - (ک + ن + ډا + س)(اس ، مذ ) هغه کس چې غاښونه ئې پرېوتي وي او خولهٔ ئې له غاښونو خالي وي۔(خصوصاً وړاندیني غاښونه)

وېښتهٔ سپین ،سترګې تاریکې،غاښ کنډاس

نــــهٔ وکارېږ د دنیـــــا لـــه چارو لاس (رحمان بابا)

**ـــ توب:** - (ـــ تو + ب)

**ـــ تیا:** - (ــــ ت + یا) (اس (۱) مـذ ، (۲) مـو) د غاښـونو پرېوتنـه ، د غاښونو پرېوتو سره خولهٔ خالي کېدنه۔

**ـــ کېدل:** - غاښونه پرېوتل ، بې غاښو کېدل۔

لاس دې وخاتهٔ په خولهٔ شولې کنډاس

لاد نـهٔ خـېژي لـه بــدو چارو لاس (حمید)

**ـــ والے:** - (ـــ وا + لے)(و ـــ کنډاس توب)

**کنډال:** - (ک + ن + ډا + ل)(اس ، مذ ، ج - ونه)(۱) د کنډول د شکل لوے

لوښې چې جامې په کښې خوشتولې شي. (۲) لوے خاورين طباق يا ښانک (۳) کرېچې ، هرکاره.

**کنډال** :- (ک + ن + ډا + ل) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) پياله ، لوښې

ستا همزولي بادشاهي کا
پټ په چار عنصر کنډولي (ارزاني)

**کنډاو** :- (ک + ن + ډا + و) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) ۱) رخنه ، چاود ، درز (۲) دره

**کنډاو** :- (ک + ن + ډا + و) (اس ، مذ) هغه غوياے چې ښکر ئې مات شوے وي. کنډا.

**کنډاو** :- (ک + ن + ډا + و) (صف) ناقص ، نامکمه ، نيمګړے.

**ـــــ کېدل** :- (۱) کمے راتلل ، نيمګړتيا راتلل (۲) خرڅ کېدل ، د پنګې نه څۀ قدرې پيسې ټکې لګېدل.

**جوړې دې ـــــ نۀ شي** :-

**جوړې موــــ مه شه** :- (جمله) د داسې دوو ملګرو يا دوستانو دپاره د دعا په طور وئيلے شي. چې د دواړو ملګرتيا دې خداے پاک قايمه لري.

**کنډر** :- (ک + ن + ډ + ر) (اس ، مذ) (۱) د کوټې چار ديوارې چې لاچت پرې نۀ وي جوړ شوے. (۲) هغه ورانه شوې کوټه چې چت ئې پرېوتے او رنګ شوے وي. نړېدلے کور. (۳) د انکسار دپاره د ځينو بانډو نوم هم کښېښودے شي. (د جمعې په شکل کښې مؤنث يعنې ,, کنډرې ،، استعمالېږي. لکه: پرون کنډرو ته تلے وم. (۴) وړوکے کچه کور (چې عموماً د همسايه ؤ دپاره جوړولے شي). کنډواله.

**په ـــــ کښې اوسېدل، د چا** :- د چا په کور کښې د همسايه (پقير) په طور اوسېدل ، احسان مند يا د حکم تابع ,, بودل ،، عموماً په نفي کښې استعمالېږي. لکه په کنډر کښې خو دې نۀ اوسم.

**کنډر** :- (ک + ن + ډ + ر) (اس ، مذ) هغه سورے چې د غلا دپاره د کوټې په دېوال کښې جوړ کړے شي.

**ـــــ کول** :- د غلا دپاره د چا د کوټې په دېوال کښې سورے کول (چې سړے په کښې ننوتے شي)

**ـــــ کېدل** :- (۱) د چا د کوټې په دېوال کښې د غلو سورے کول. (۲) د کنډر په ذريعه د چا غلا کېدل.

**کنډرې** :- (ک + ن + ډ + رې) (اس ، مذ ، ج ـــــ ان) د بل په کنډر کښې اوسېدونکے ، د بل همسايه ، فقير ، پقير.

**کنډرې** :- (ک + ن + ډ + رې) (اس ، مو ، ج) د کنډره جمع ده. چې د کنډر تانيث دے. (و ـــــ کنډر (۳))

**کنډرے** :- (ک + ن + ډ + رے) (اس ، مذ) يو قسم وړوکے شان ازغن (اغزن) ځيز. چې غونډ وي. او اکثر د ګډو په وړي ونښلي.

**کنډک** :- (ک + ن + ډ + ک) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د ګډو يو ټولے چې يو ځاے ساتلے او څرولے شي. د ګډو رمه.

بـد عمـل لېونے سړے دے
چې حملې په خپل کنډک کا (خوشحال)

**کنډک** :- (ک + ن + ډ + ک) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) د ډوډۍ يوه ټکړه. حصه (۲) يو ټکړه (د هر ځيز چې وي).

**کنډک** :- (ک + ن + ډ + ک) (اس ، مذ ، ج- ونه) د افغانستان په عسکري (فوځي) اصلاح کښې د پرشو سپاهيانو ټولے.

**کنډکټ** :- (ک + ن + ډ + ک + ټ) (انګ ، اس ، مذ) چال چلن ، خوي بوي ، عادتونه ، ناسته پاسته.

**کنډکے** :- (ک + ن + ډ + کے) (اس ، مذ ، ج ـــــ کي) (د وينې وغېره) ټينګ (منجمد) شوې ټکړه.

**کنډکين** :- (ک + ن + ډ + کي + ن) (صف ، مذ ، موــــ ه) سپين سين ، د سپي سو نه جوړ شوے.

**کنډو** :- (ک + ن + ډو) (و ـــــ کنډاو)

**ـــــ کنډو** :- (صف) هغه ځيز چې په کښې رخنې وي. لکه: کنډو کنډو رمنځ

**ـــــ کول** :- نيمګړے کول ، ناقص کول ، رخنه په کښې اچول ،

درست جهان که تېرې تورې درته واخلي
يو وښتۀ به دې کنډو نه که بې خداے (خوشحال)

**ـــــ کول** :- کنډر کول ، په دېوال کښې (د غلا دپاره) سورے کول. لکه: په دېوال کښې کنډو کول.

**ـــــ والے** :- (ـــــ وا + لے) (اس ، مذ) رخنه ، کمے ، نيمګړتيا ، کماوښت.

**کنډواله** :- (ک + ن + ډ + وا + لَ) (اس ، مو ، ج ـــــ لې) کنډرې ، د پخوانۍ زمانې د ابادۍ ورانې ويجاړې پاتې شوې نخښې نښانې ، د پخوانۍ زمانې اثار. (هـ ـــ کنډرات)

اولنۍ خـــونې لاښې دي
يو په بل کښې کنډولې دي (غاړه)

**ـــــ کول** :- کنډرې جوړول ، ابادي ورانول ، لوټې لوټې کول ، ويرانول.

**ـــــ کېدل** :- د ابادۍ نړېدل ، کنډرې کېدل ، د ابادۍ ورانېدل ، لوټې لوټې کېدل.

**کنډوالي** :- (ک + ن + ډ + وا + لي) (اس ، مذ ، ج) د زړو عمارتونو اثار ، کنډرې ، خرابي.

**کنډور** :- (ک + ن + ډو + ر) (اس ، جم) روغني (غوړه) ماده چې په کاغذ باندې ومښلي شي. او بيا پرې رنګونه ودرولے شي.

**کنډوري** :- (ک + ن + ډو + ري) (اس ، جم) چيړ ، هغه سلېښداره غوټې شان کومې چې د ځينو ونو په تنو او ښاخونو کښې پېدا شي. اکثر په داروګانو کښې استعمالېږي. او سلېښ (ګوند) هم ترې جوړولے شي.

**کنډورے** :- (ک + ن + ډو + رے) (اس ، مذ ، ج ـــــ رې) د کتې ګوټې او د مسواکې ګوټې تر مېنځه فاصله.

**کنډوسکي** :- (ک + ن + ډو + س + کي) (اس ، جم) د جوارو د وړې توکه.

**کنډوک** :- (ک + ن + ډو + ک) (اس ، مذ ، ج ـــــ ان) کاسې جوړونکے ، کاسه ګر ، کونډوک.

**کنډوکے** :- (ک + ن + ډو + کے) (اس ، مذ ، ج ـــــ کي) د متيايۍ يا د خوراک کوم بل ځيز يوه ټکړه.

**کنډول** :- (ک + ن + ډو + ل) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) خاورين جام ، د اوبو څښکلو د خاورو لوښے ، پياله

بادشاهان که اوبۀ څښکي په جام د زرو
ما رحمان لره د خاورو کنډول بس دے (رحمان بابا)

(۲) د اوړو د اخښلو لوے لوښے ، ښانکے (۳) مات شوے خاورين لوښے.

**کنډول** :- (ک + ن + ډو + ل) (صف ، مذ ، موــــ ه) کنډاس ، هغه سړے چې په خولۀ کښې ئې غاښونه نۀ وي.

**کنډوله** :- (ک + ن + ډو + لَ) (اس ، مو ، ج ـــــ لې) يو قسم غرئيز بوټے دے. چې د غرۀ خلک ئې خوري. تريو وړے.

لکه: جنګ کور وکړي کنډولے په صحرا نۀ خوري. (متل) (کور کښې مرور وۀ او کنډولې ئې په غرۀ کښې نۀ خوړې)

**کنډولې** :- (ک + ن + ډو + ل + ې) د ,, کنډولے ،، تانيث دے. د څښاک

وړوکے شان خاورین ، لوښے ، خاورینه پیالۍ.

**کنډولے** :- (ک + ن + ډو + لے)(اس ، مذ ، ج ـــــ لي) د ,, کنډول ،، تصغیر دے.وړوکے کنډول ، د اوبو څښلو وړوکے خاورین لوښے.

**کنډولے** :- (ک + ن + ډو + لے)(اس ، مذ ، ج ـــــ لي)د خاورو مات لوښے چې په کښې چرګو وغېره ته اوبۀ ږدي.

**کنډولے** :- (ک + ن + ډو + لے)(اس ، مذ )یو قسم نبات ، وابښۀ خر کور کښې

مرور شي ، کنډولے بهر نه خوري (متل)

,, نۀ په غرۀ ختلے وم نۀ مې کنډولے خوړلے دے ،،

**کنډوے** :- (ک + ن + ډ + وے)(اس ، مذ ، ج ، وي) د ډوډۍ (یا د بل کوم څیز) ټکړه.

**کنډه** :- (ک + ن + ډَ)(اس ، مو ، ج ـــــ ډې)د جواهراتو او د سپینو سرو زرو د تللو وړه تله.

**ـــــ په کنډه** :- (ـــــ پ + ک + ن + ډَ) (پ تر ، صف)پوره په پوره ، بېخي برابر ، بالکل یو شان یا یو برابر.

**په ـــــ تللے** :- (پ ـــــ ت + ل + لے) پوره پوره تللے شوے.چې ذره برابر فرق په کښې نۀ وي.په تول پوره.

**کنډه** :- (ک + ن + ډَ) (اس ، مو ، ج ـــــ ډې) کاڼے ، غټ کاڼے .(عموماً هغه کاڼے چې تقریباً غونډ وي) تیږه

زلزله په جهان ګډه شوه خوشحاله

د اسمان له شدتونو کنډې رغړي (خوشحال)

**کنډه** :- (ک + ن + ډَ) (اس ، مو ، ج ـــــ ډې)تراشه ، تراشلے څیز ، مجسمه.

**کنډه** :- (ک + ن + ډَ) (اس ، مو ، ج ـــــ ډې) هغه ځاے چېرته نه چې یو دریاب ووځي.د دریاب سر ، منبع.

**کنډه** :- (ک + ن + ډَ) (و ـــــ کنده)

**کنډه** :- (ک + ن + ډَ) (صف ، اس ، مو ، ج ـــــ ډې) هغه ښځه چې خاوند ئې مړ شوے وي.کونډه کنډه چې مېړۀ کا نو د وخته ولې نه کا (متل)

**ـــــ کول** :- کنډې ښځې سره وادۀ کول.

**ـــــ کېدل** :- د ښځې خاوند (څښتن) مړ کېدل.لکه: فلانۍ په ځوانه ځوانۍ کښې کنډه شوه.

**کنډه** :- (ک + ن + ډَ)(اس ، مو ، ج ـــــ ډې)د اوسپنې (یا د بل کوم دهات) وړوکے یا لوے سیخ چې سر ئې تاو شوے وي.او دغه تاو شوے سرې نورو څیزونو سره ونښلي.کونډه.

**ـــــ وراچول** :- مجازاً په قابو کښې راوستل.

**کنډۍ** :- (اس ، مع) یوه وړه شان پاونده قبیله ده .چې د ټانک په علاقه کښې اباده ده.(ددې قبیلې څانګې دادي : اچاخېل چارګل او ملاخېل)

**کنډۍ** :- (ک + ن + ډ + ی)(اس ، مو) د ښکاریانو د پټېدلو ځاے ، هغه ځاے چې وښو وغېره سر پټ کړے شي او ښکاري په کښې ښکار ته پټ په ساو کښې کښېني.کمین ګاه.

کنډۍ :- (ک + ن + ډ + ی)(اس ، مو) ټوټۍ ، د لرګي لویه ځمڅه چې ښۀ پرېمان شے په کښې راځي.,, کنډۍ سره به ئې را اوباسۀ او په ځمڅو به ئې خوارۀ ،،.

**کنډے** :- (ک + ن + ډے) (اص ، صفت) هغه سړے چې وړاندیني غاښونه ئې پرېوتي وي.

**کنډے** :- (ک + ن + ډے)(اس ، مذ ، ج ـــــ ډي) یو ښکرے غویاے

**کنډې** :- (ک + ن + ډے)(اس ، مو ، ج)(۱) د ,, کنډه ،، جمع ده .(۲) د ,, کنډه ،، اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل.

**کنډیاله** :- (ک + ن + ډ + یا + لَ)(اس ، مو ، ج ـــــ لې) د څاروو د اودرولو ځاے ، کچه کوټه چې څاروي په کښې ودرولے شي.

**کنډیاله** :- (ک + ن + ډ + یا + لَ) (اس ، مو ، ج ـــــ لې) خرابه ، وران شوے کلے یا ابادي ، کنډواله.

**کنډیشنر** :- (ک + ن + ډي + ش + ن + ر) (انګ ، اس ، مذ)هغه اله چې کوټه یخ باد سره یخوي (ائیر کنډیشنر)

**کنډېل** :- (ک + ن + ډې + ل) (و ـــــ کنډول)

**کنرکے** :- (ک + ن + ر + کے) (اس ، مذ ، ج ـــــ کي) د لاندي کباب ، د اوچې کړې غوښې کباب.

**کنړ** :- (ک / کو+ ن + ړ)(اس ، مع) د افغانستان قطب نمر ختیځ طرف ته د یوې علاقې نوم.

**د ـــــ ولایت** :- (ـــــ و + لا+ ي + ت) (اس ، مع) د کونړ صوبه.

**کنړي** :- (ک / کو+ ن + ړي) (اس ، صف)د کونړ علاقې سره تعلق لرونکے.

د کونړ علاقې ته منسوب لکه : کنړۍ وریجې.

**کنیک** :- (ک / کو+ ن + ړ + ي + ک) (اس ، مذ ) کټمل (کوڼیَک)

**کنړوال** :- (ک / کو+ ن + ړې + وا + ل) (اس ، مذ ، ج ـــــ ان) دوړ ، د غټو څادرونو یا د کمبلو رودونکے.

**کنز** :- (ک + ن + ز)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه / کنوز)(۱) خزانه ، مخزن ، ګنجینه ، زیرمه (۲) د عربۍ د فقه او د لغت یو مشهور کتاب چې په پښتو کښې ئې هم ترجمه شوې ده.

**کنزاینمنټ**:- (ک +ن + زا+ ئ + ن + م + ن + ټ )(انګ ، اس ، مذ )لېږنه ، لېږلے شوے مال ، هغه مال چې نمائنده ته د پلورلو دپاره استولے کېږي.کنسائن منټ

**کنزل**:- (ک + ن + ز + ل)(و ـــــ کنځل)

**کنزه ګوته** :- (ک + ن + ز + ګ + ت)(و ـــــ کنځه ګوته)

**کنست** :- (ک + ن + س + ت)(فعل)د کنستل مصدر نه (څخه) حاصل مصدر.کنستنه ، کنسته ، کندنه.

**کنستر**:- (ک + ن + س + ت + ر)(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) ټیم ، د ټیم نه جوړ شوے لوے څلور ګوټیز دبلے .چې په کښې عموماً د خاورو تېل (یا غوړي) راځي.

**کنستک**:- (ک + ن + س + ت + ک)(صف ، اس ، مذ ، مو ـــــ ه) شوم ، کروټے، کنجوس.

**ـــــ توب**:- (ـــــ تو + ب) ـــــ تیا(۲) :- (ـــــ ت + یا)(اس (۱) مذ ، (۲) مو ، شومتیا ، شوموالے ، کنجوسي.

**کنستل**:- (ک + ن + س + ت + ل)(مص)کندل ، کېندل (ف : کندل)

**کنستلے**:- (ک + ن + س + ت + لے)(اس ، مف ، مذ ، ج ـــــ لي)کندلے شوے، کیندلے.

**کنستنه**:- (ک + ن + س + ت + ن) (حمص)د کندلو کار ، کندنه ، کېندنه.

**کنستونکے** :- (ک + ن + س + تو + ن + کے)(اس فا ، مذ ، ج ـــــ کي) کندونکے ، کېندونکے.

**کنستے**:- (ک + ن + س + تے)(اس ، مذ ، ج ـــــ تي)خسیس ، شوم ، کنسکے

**کنسټه**:- (ک + ن + س + ټَ)(و ـــــ کونسټه)

**کنسځے**:- (ک + ن + س + (د) زے)(اس ، مذ ) یو قسم وابښۀ دي.

**کنسرت**:- (ک + ن + س + ر + ت)

**کنسرټ**:- (ک + ن + س + ر + ټ) (انګ ، اس ، مذ )په ګډه ساز او اواز ، ساز سره په اواز کښې مدافعت.

**کنسروه:** - (ک + ن + س + ر + وَ) (انګ / فر ، مص) ساتل ، خوندي کول ، په ډبلو کښې محفوظ کول . (لکه د خوراک ځینې ځیزونه په ډبلو کښې بندول) .

**کنسکے:** - (ک + ن + س+ کے) (اس ، مذ ، ج ــــ کي / ان) شوم شغال، خسیس .

**کنسکے:** - (ک + ن + س + کے) (اس ، صف ، مذ ، ج ــــ کي) شوم ، کروټے ، کنجوس .

**کنسکے:** - (ک + ن + س + کے) (اس ، مذ ، ج ــــ ان) کروټ ، شوم ، بخیل .

**کنسکې:** - (ک + ن + س + کي) (اس ، مو) شومتیا ، شوموالے ، بخیلي ، کروټي .

**کن سوے:** - (کُ + ن + س + وے) (پ ، تر ، صف) په اس باندې په شا توري سورلی سره د بدن د ځینو برخو زخمي کېدنه .

**کن سوے:** - (کُ + ن + س + وے) (پ تر ، صف) کنه سوے ، د کټوی په تل کښې د ځینې ځیز ، د اور د زیاتي له کبله سوځېدل . (عموماً د پیو (شودو) په حقله وئیلے شي) .

**کنشـــت** : - (کُ + ن + ش + ت) (ف ، اس ، مـــذ ، ج ـــــــ ونــــه) دپارسیانو دعبادت ځـــاے ، د اتـش پرستو (د اور عبـادت کوونکـو) عبادتخانه

بخت د عـکرمه وو په سودا د یدن عزیز شه

خوار شۀ ابوجهل چې سودا ئې وه له کنشته (حافظ)

**کنښت** : - (کُ + ن + ښ + ت) (حمص) د کنستلو کار ، کندنه ، کیندنه .

**کنعــان** : - (کُ + ن + عــا + ن) (اس مــع) (۱) د شــام د قبلئیــزې برخــې او د فلسطین پخوانے نوم . د حضرت یعقوب علیه السلام وطن ، حضرت یوسف علیه السلام دلته پیدا شوے وو . هم د دې ملک په یو ښهر (ښار) بیت اللحم کښې حضرت عیسٰی علیه السلام زیږېدلے وۀ .

(ځینو د ک زبر سره هم لیکلے دے)

که یـوسف ئې دکنعان د چاهه وکښښ

په نیک بخت ستوري زورلےۀ بشیر (خوشحال)

(۲) د حضرت نوح علیه السلام د زوے نوم .

دوست چې دبدانو وه کنعان په طوفان غرق شۀ

وو پیـــدا د نــوم نبي لــه پــاکه صلبه پشته (حافظ)

**پیـر ــــــ** : - (پي + ر ــــــ) (ف تر ، اس ، مع) د کنعـان بـوډا ، یـا بـزرګ سړے ، مراد ترې یعقوب علیه السلام دے .

**ماه ــــــ** : - (ما + هـ ــــــ) (ف تر ، اس ، مع) د کنعـان سپوږمی ، مراد ترې حضرت یوسف علیه السلام دے . چې خدا ے پـاک ورلـه ډېر زیات ښائست ورکړے وۀ .

**کنعـاني:** - (کُ + ن + عـا + نـي) (ف تـر ، اس ، مـذ ، ج ــــ ان) (۱) د کنعـان اوسېدونکے (۲) د کنعان ملک سره متعلق . دکنعان ملک ته منسوب .

**کنغاره** : - (کُ + ن + غا + رَ) (اس ، مو ، ج ــــ رې) د کناټي هډوکے .

**کنغاله** : - (کُ + ن + غا + له) (اس ، مو ، ج ــــ لې) کوژدن ، کوئیدن .

**کنغښے:** - (کُ + ن + غ + ښے / ښے) (اس ، مـذ ، ج ــــ ښـي) د جـامنې (ژامې) هډوکے .

**کنف:** - (کُ + ن + ف) (ع ، اس) (۱) خوا ، اړخ ، څنډه (۲) د ارام ځـاے ، د پناه ځاے

په هر کار کښې کمیني کوه حمیده

ډېرو وړے دے کمال لــه دې کنف (حمید)

**کنفیډریشـن** : - (ک +ن+ف +ډ+ رې + ش + ن) (انګ ، تر ، اس ، مـذ) اتحـاد ، یو لاس والے ، د یو ملک د مختلفو صوبو یو والے یا یو لاس کېدنه .

**کنفیوز** : - (ک +ن+ف + یو + ز) (انګ ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) سره ګډوډ ، په دوو کښې حېرانېدنه ، مغشوش کېدنه .

**کنک** : - (ک +ن+ک) (صف ، مذ ، مو ــــ ه) کنسکے ، شوم ، کنجوس ، پیسه چوټ .

**کنګاش** : - (ک +ن+ کا+ ش)

**کنګاش** : - (ک +ن+ګا + ش) (ت ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) صلاح ، مصلحت ، مشوره ، سلا (خصوصاً فوځي مشوره) .

**ــــــ کول** : - صلاح مشوره کول ، مصلحت کول (خصوصـــاً فـــوځي معاملاتو په حقله) .

**کنګرک** : - (ک +ن+ک + ر + ک) (صف ، مذ ، مو ــــ ه) منجمد شوے ، جماو شوے ، چکه شوے .

**کنګـره** : - (ک +ن+ک + رَ) (اس ، مو ، ج ــــ رې) کوکره ، کـوکرے ، د سترګو مرض .

**کنګرے** : - (ک +ن+ک + رے) (اس ، مذ ، ج ــــ ري) د ډوډۍ هغه پترے چې په تنور کښې پاتې او سخت شي .

**کنکریټ** : - (ک +ن+ک + ري + ټ) (انګ ، اس ، جم) د باجرۍ ، شګې او د سیمټو نه جوړ شوے مرکب ، چې په عمارتونو وغېره کښې پکارولے شي .

**کنکشـن** : - (ک +ن+ک + ش + ن) (انګ ، اس) (۱) ربط ، تـړون ، ارتبـاط ، تعلق (۲) ملاوېدنه ، یو ځاے کېدنه .

**ــــــ جنګول** : - سُر سار لګول ، تعلق پیدا کول .

**د بجلۍ ــــــ** : - (د + ب/ بي + ج + ل + ی ــــ) د برق لویو تارونو سره د یو کور یا د ځاے د بجلۍ تارونه یو ځاے کونه . د بجلۍ د رو یو ځاے کونه .

**کنکلي** : - (ک +ن+ک + لي) (اس ، ج) (بل) وارۀ کشتي

**کنکوک** : - (ک +ن+ کو +ک) (هـ ، اس ، مذ) باډیوه ، باد هوا ، برمکے (هـ ــــ کنکوا) .

**کنګ** : - (ک +ن+ ګ) (صف ، مذ ، ج ــــ ه) (۱) لوړ قد والـه (۲) (مؤنث) نوې پېغله شوې جینۍ

سره ښـه د زۀ خوښي کاندې همځولې

نۀ د لوے ، نۀ د هلک دے یار د کنګې (خوشحال)

**کنګاځے** : - (ک +ن+ ګا + (د) زے) (و ــــ کنګلنې)

**کنګاچ** : - (ک +ن+ ګا + چ) (و ــــ کنګاش)

**کنګاش** : - (ک +ن+ ګا + ش) (ت ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) صلاح، مشـــوره، مصلحت ، (خصوصاً د فوځي مصلحت غونډه) کنګاچ

د کنګاش عـــلم د چا دے تورو زلفو

لکـه څوک لــولي قران په مکتبونو (خوشحال)

**کنګال** : - (ک +ن+ ګا + ل) (هـ ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) مفلس ، خوار ، ډېر غریب، چې مال دولت ورځخه بېخي نۀ وي . نیستمند ، نادار ، قلاش

شعر کار د هر فاسق د فاجر نۀ دے

نۀ د هـر یـوۀ وړ سترګي د کنګال (خوشحال)

**ــــــ کېدل** : - مفلس کېدل ، خوارېدل ، پیسه ټکه نۀ پاتې کېدل (چا سره) ، غریب کېدل ، بېخي بې ماله کېدل .

**کنګال** : - (ک +ن+ ګا + ل) (هـ ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) (۱) هغه لوښے وغېره چې په اوبو سره صفا کړے شوے وي . هغه لوے لوښے وغېره چې اوبۀ په کښې ړکولے او بیا تـوئې کړے شوې وي . (۲) هغه اوبۀ

چې کوم لوښې پرې کنګال شوې وي. هغه اوبهٔ چې کوم لوښې یا لوښي پرې صفا شوې وي.

**د ـــــ اوبهٔ**: - (ـــــ او + ب)(پ تر، اس، جم)هغه اوبهٔ چې په یو لوښي کښې وړقولې راوړقولې شي او بیا تږې راتوئې کړے شي.

**کنګالول**: - (ک +ن+ ګا + ل + و + ل)(مص)کنګال کول، پیسې ټکې مال دولت هر څهٔ د چا نه اخیستل او هیڅ ورځخه نهٔ پرېښودل، خوارول، مفلس کول.

**کنګالول**: - (ک +ن+ ګا + ل + و + ل)(مص)په لوښي کښې اوبهٔ رقول او بیا تویول. لوښے اوبو سره صفا کول، ابکش کول.

**کنګالونه**: - (ک +ن+ ګا + ل + و + ن) (حمص) په لوښي کښې اوبهٔ ګرځونه، لوښے په اوبو صفا کونه.

**کنګالوونکے**: - (ک+ن+ ګا + ل + وو + ن + کے)(اس، فا، مذ، ج ـــــ کي) هغه کس چې لوښے په اوبو سره صفا کوي. په لوښي کښې اوبهٔ ګرځونکے.

**کنګالي**: - (ک +ن+ ګا + لي) (و ـــــ د کنګال اوبهٔ)

**کنګالېدل**: - (ک +ن+ ګا + لې + د + ل)(مص) پیسې ټکې هیڅ (ورځخه) نهٔ پاتې کېدل. مفلس کېدل، بېخي خوارېدل. قلاش کېدل.

**کنګالېدل**: - (ک +ن+ ګا + لې + د + ل)(مص) د لوښي په اوبو سره صفا کېدل. په لوښي کښې اوبهٔ ګرځولے کېدل.

**کنګخړ**: - (ک +ن+ ګ + خ + ړ)

**کنګخړه**: - (ک +ن+ ګ + خ + ړَ)(و ـــــ کنګخړي)

**کنګخړي**: - (ک +ن+ ګ + خ + ړي) (اس، جم) (۱) هغه لرګي وابنهٔ، ګند بلا، کوم چې سېلاب د ځان سره راوړي. کنګخړے. (۲) مجازاً بې کاره او ناپکاره، وارهٔ نري ځیزونه.

که اباسي راغلے نهٔ وے
په کنګخړو کښې به چا موندل لعلونه (ټپه)

**کنګر**: - (ک +ن+ ګ + ر)(هـ، اس، مذ) هغه خښته چې د زیات اور په وجه سوځېدلے او کړه وړه شوې وي. یا ګڼې خښتې یو بلې سره نښتې وي.

**کنګر**: - (ک +ن+ ګ + ر)(اس، مذ، ج ـــــ ونه) پیلـو، زیـره تیـره سرګلونے، هغه کانړے چې سوري سوري او زیږوي. خلک پرې عموماً پښې صفا کوي.

**کنګرخل**: - (ک +ن+ ګ + ر + خ + ل)(اس، جم)هغه وابنهٔ چې د څاروو وغیره د خوراک نه پاتې شي.

**کنګرو**: - (ک +ن+ ګ + رو)(انګ، اس، مذ، ج ـــــ ګان)د استریلیا د ملک یو ځناور، چې د هوسۍ هومره وي او وروستنۍ پښې ئې د مخکښینو پښو نه ډېرې لوئې وي. ډېره تېزه منډه وهلے شي. د خیټې دپاسه ئې یوه جولۍ بالو جګۍ غوندې وي چې خپل بچے په کښې کښېنوي او محفوظ ئې ساتي.

**کنګره**: - (ک +ن+ ګ + رَ)(اس، مو، ج ـــــ رې)کنګل، هغه واوره کومه چې ژمي (جمي) کښې د اوبو په سر جوړه شي.

**کنګره**: - (ک +ن+ ګ + رَ)(و ـــــ کانګریس)

**کنګره**: - (ک +ن+ ګ + رَ)(ف، اس، مو، ج ـــــ رې) د قلا وغیره د دېوال دپاسه غابني شان.

**ـــــ دار**: - (ـــــ دا + ر)(ف تر، صف، مذ، مو ـــــ ه)د قلا دیوال وغیره چې دپاسه پرې غابني شان جوړ کړې شوې وي. کنګرو واله، کنګرے لرونکے.

**په ـــــ ختل**: - اوچت ختل، اوچتې درجې ته رسېدل.

پرېوت تـاتـریـن تـه ابوجهل قریشي وو
وخوت حبشي بلال د دین په کنګرې لوړې (حافظ)

**کنګری**: - (ک +ن+ ګ + ر + ی)(اس، مو)(۱) په دېوال کښې وړې وړې خچې (۲) د دېوال الماری(۳) د دېوال په سر جوړه شوې جنګله

**کنګرے**: - (ک +ن+ ګ + رے) یا: - (ک / کو / ن + ګ + رے)(اس، مذو، ج ـــــ رې) ډېر وړوکے کوترے، د سپي ډېر وړوکے بچے.

**کنګرېزے**: - (ک +ن+ ګ + رے + زے) (اس، مذ، ج ـــــ زي)په غرهٔ کښې اهنګ واله اواز، رېږدونکے اواز.

**ـــــ کېدل، په غوږ کښې**: - په غوږ کښې اهنګ واله اواز راتلل.

**کنګړ**: - (ک +ن+ ګ + ړ)(اس، مذ، ج ـــــ ونه) وښے، غټ بنګړے، کنګڼ

**کنګړ**: - (ک +ن+ ګ + ړ)(اس، جم) د څاروو د خوراک نه پس پاتې شوې ګیاه، کنګرخل.

**کنګړ**: - (ک +ن+ ګ + ړ)(و ـــــ کنګل)

**کنګړے**: - (ک +ن+ ګ + ړے)(اس جم) د ډلې وړې وړې سختې دانې.

**کنګس**: - (ک +ن+ ګ + س)(اس، مذ، ج ـــــ ونه) ټکره، بدري، ټوکر، تیندک.

**ـــــ خوړل**: - (۱) تیندک خوړل، بدري خوړل، ټکره خوړل (۲) یو طرف ته تاوېدل، رخ بدلول

چې ګهے په مخه راشې کنګس خورې
یو تـېـرے نـظر ونهٔ کړې زوروې مې (خوشحال)

**کنګس**: - (ک +ن+ ګ + س) (و ـــــ ګنګس)

**ـــــ کېدل**: - (و ـــــ ګنګس کېدل)

**کنګل**: - (ک +ن+ ګ + ل)(اس، جم)(۱) هغه نرۍ واوره کومه چې په ژمي (جمي) کښې د ولاړو اوبو دپاسه جوړه شي. (۲) (صف) ډېر یخ، د واورې په شان یخ، منجمد. (۳) ډلې

ستا هجران لکه کنګل را باندې اوري
د نرګس په دود ګلونـه بـه ځیله کړم (حسېن)

**ـــــ جوړېدل**: - په ژمي (جمي) کښې د ولاړو اوبو په سر نرۍ واوره جوړېدل

**ـــــ کول**: - د اوورې په شان یخول، ډېر زیات یخول.

**ـــــ کېدل**: - ډېر زیات یخېدل، د واورې په شان سړېدل.

**ـــــ نیول**: - په ژمي (جمي) کښې د اوبو دپاسه نرۍ واوره جوړېدل.

**یخ ـــــ**: - (ي + خ ـــــ) (پ تر، صف)،، یخ ،، هم د کنګل معنې لري. دلته کنګل د ،، یخ ،، د تاکید په طور راوستے شي. ډېر زیات یخ، د واورې په شان یخ.

**کنګل**: - (ک +ن+ ګ + ل) (اس، مذ، ج ـــــ ونه) ډال، سپر.

**کنګلول**: - (ک +ن+ ګ + ل + ؤ + ل)(و ـــــ کنګل کول)

**کنګله**: - (ک +ن+ ګ + ل)(هـ، صف، ج ـــــ لان) کنګال، مفلس بېرون چې په کښې قرابتې وي. کم توان او کنګلان عیان، (هنـــد ـــــ کنګله)

**کنګلېدل**: - (ک +ن+ ګ + لې + د + ل)(و ـــــ کنګل کېدل).

**کنګڼ**: - (ک +ن+ ګ + ڼ)(هـ، اس، مذ، ج ـــــ ونه) د لاس یو کالے چې بنګړو سره په لاس کولے شي. خو د بنګړو نه ډېر غټ وي. کنګڼ، د لاس غټ بنګړے. (هـ: کنګن)

**کنګڼه**: - (ک +ن+ ګ + ڼَ)(اس، مو، ج ـــــ رې) لښتنۍ، اوږدې لښتۍ.

دا هـلال پـه سر کوزي زمکې ته راغے
که برېښنا کا ستا په مخ سپینې کنګڼې (حسېن)

**کنګو**: - (کَ +ن+ ګو)(اس، جم) زعفران، ګنګو.

**کنګوره** :- (ک +ن+ ګو + رَ)(اس ، مو ، ج ــــ رې) د څادر وغېره مزے.

**کنګولـه** :- (ک +ن+ ګـو + لَ) (اس ، مـو) وړوکې ، د انګـورو يـو قسـم ، کنګينه.

**کنګوله** :- (ک +ن+ ګو + لَ)(اس ، مو ، ج ــــ لې)(۱) د انګـورو ټوکرۍ ، هغـه خاورين لوښے چې انګور په کښې کښېښودے شي.

**کنګه** :- (ک +ن+ ګَ) (اس ، مـو ، ج ـــــ ګـې) شـنخته ، د قبـر دپاسـه د کاڼي ولاړه تخته ، ښځه ، خزه.

**کنګۍ** :- (ک +ن+ ګ + ی)(اس ، مو) د کنګه تصغير دے. (و ــ کنګه)

**کنګينه** :- (ک +ن+ ګي + نَ)(اس ، مـو ، ج ـــــ نې) لويـه کاسـه (يـا لوښے) چې په کښې سکاره او ايرې وغېره کښېښودے شي.

**کنګينه** :- (ک +ن+ ګي + نَ) (و ــــ کنګوله)

**کنل** :- (کَ +ن+ ل) يا (ک + ن + ل) (مص)کنستل ، کيندل کينل.

**کنوار** :- (ک +ن+ وا + ر)

**کنوارے** :- (ک +ن+ وا + رے)(اس صوت)د سپي اوړدې اوږدې چغې خصوصاً چې څوک ئې ووهي يا ئې خوږ کړي. د کوترې پرله پسې اواز.

**کنوبے** :- (ک +نو + بے)(اس ، مذ)(۱) هغـه ښـوروا چې د کټـوۍ يـا د ديګچې په تل کښې پاتې شي. (۲) هغـه ښـوروا چې غـوړ پـه کښـې ډېر کـم وي يـا ښځې نهٔ وي. تشې اوبهٔ وي.

**کنود** :- (ک +نو + د)(حمص)د ,, کنل ،، مصدر نه حاصـل مصـدر ، د کنسـتلو کار ، کنستنه ، کنودنه.

**کنود** :- (ک +نو + د) (فعل)د کنل (يا کنودل) مصدر نه د ماضي فعل.

**کنودل** :- (ک +نو + د + ل)(مص)کنل ، کنستل ، کيندل.

**کنودنه** :- (ک +نو + د + نَ) (حمص)کنستنه ، کنسته ، کيندنه.

**کنودونکے** :- (ک +نو + دو + ن + کے)(اس ، فا ، مذ ، ج ــــ کي) کنستونکے ، کيندونکے ، کنونکے.

**کنوز** :- (ک +نو + ز)د ,, کنز ،، جمع ده.

چې کنوز جمع کوي مل د قارون وي

د قارون قــرين به کله پاک نهاد شي (حافظ)

**کنوښے** :- (ک +نو + خے / ښے)(اس ، مذ ، ج ــــ ښي) د اس زين.

**کنول** :- (ک + ن + و + ل)(هـ ، اس ، مذ ،ج ـــــ ونه) مشهـور سپين ګـل دے. د برسنديې ګل. په اوبو کښې د يو بوټي ګل دے.

دغه سترګې ئې کنول کښې ئې بورا شول

او کاتـهٔ لـکه هوسۍ صاحب اختيار دي (انصاري) (زړه پانګه)

**کنول** :- (ک + ن + و + ل)(مص)کيندل ، کنستل ، کنودل.

**کنونشن** :- (ک + ن + و + ن + ش + ن)(انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونـه)جرګـه ، مجلس ، د دود دستور له مخې کړنه.

**کنونکے** :- (ک +نو + ن + کے (اس ، فـا ، مــذ ، ج ـــ کــي)کنســتونکے ، کيندونکے

**کنه** :- (ک + نَ)(فعل) د,کنل ، مصدر نه د امر استمراري صيغه ، کنستل کوه

**کنه** :- (ک + نَ)(اس ، مو ، ج ـــــ کنې)وړوکې سپږه ، کينکه.

**کنه** :- (ک + نَ) (حرف) حرف تاکيد.

**کنه** :- (ک + نَ)(پ تر ، جمله) د ,, که ،، او ,, نه ،، مرکب دے. خو که ,, که ،، او ,, نه ،، جدا جدا وليکلے شي نو نورې معنې ورکوي. (و ــ که نه) او که يو ځاے وليکلے شي نو د خپلې يوې خبظې نه پس د اودرېدونکي د تصديق د تپوس دپاره راځي. لکه: فلانے ښهٔ سړے دے کنه ؟

تــوره چې تــيرېـږي نـو ګذار لره کنه

زلفې چې ولول شي نو خپل يار لره کنه (خوشحال)

(۲) د تاکيد دپاره راځي. راشه کنه (۳) تکيه کلام هم دے.

**او ـــــ** :- (او ــــــ)

**هو ـــــ** :- (هو ـــــ) د خپلې وينا د تاکيد دپاره وئيلے شي.

**کنه** :- (ک + نَ) (حرف) د اصرار په طور وئيلے شي. لکه: وځښکه کنه ، راشه کنه !

**کنه** :- (ک + نَ) (ع ، اس ، مـذ)(۱) تـل ، د کـوم څيـز انتهـا ،(۲) حقيقـت ، ماهيت (۳) باريکي ، د خبرې مغز.

**ـــــ ته رسېدل** :- د خبرې مغز ته رسېدل ، د خبرې حقيقت تـه رسېدل ، د خبرې تل ته رسېدل.

**کنه** :- (ک + نَ) (اس ، مو ، ج ــــــ نې)(۱) د لويو بولو ځاے ، مقعد (۲) د لوښي وغېره هغه برخه په کومه چې دغه لوښے ودرولے شي. د لوښي وغېره لاندينۍ حصه. (۳) د خپل تن وجود حصه ، مجازاً خپل ورور عزيز چې بد عمله وي. کُنۍ ! ما پسې مه راځه تانه بوئي ځي ! (متل)

**ـــــ ارته تنګه کول** :- (بازاري) په کار کښې ناز نخرې کول. ټال متول کول.

**ـــــ پاکول** :- (۱) د لويـو بولـو نـه پس کنـه صـفا کـول (۲) (چالـه) د چـا د بدکارۍ صفائي کول.

**ـــــ پرې سوځل** :- محاوره حسد کول ، کست کول.

**ـــــ په ځاے (په زمکه وغېره) نهٔ لګول** :- په قلار نهٔ کښېناستل ، دمه نهٔ کول. هر وخت په کار کښې (يا په سفر کښې) ,, بودل ،،

**ـــــ په کنه** :- (ــــ پ + ک + ن)(پ تر ، صف)داسې حالت چې د دوو کسانو يو بل ته شا وي. لکه: کنه په کنه ئې وتړل.

**ـــــ په کودرې ګرول** :- ډېر زيات شوم کېدل.

**ـــــ خلاصول، خپله** :- خپل ځان خلاصول. د بل د پنجې نه خپل ځان ازادول.

**ـــــ د خوراک کېدل** :- بچې لوئېدل ، د بچو ذمه دارې په سر راتلل.

چې کنه د خوراک شي نو خولهٔ دې زهر / غُل وخوري. (متل)

**ـــــ درزے** :- (ــــــ د + ر + ز + زے)(پ تـر ، صـف)(بـازارې) کـونې ، ګانډو.

**ـــــ رېږدېدل** :- مجازاً وېرې اخېستل ، وېرېدل ، خطره محسوسول.

چې کنې نــهٔ ئې نــو کنه دې مه رېږده. (متل)

**ـــــ سوے** :- (ــــــ س + و + ے)(پ تر ، صف) پـۍ يـا شـودهٔ چې د ډېر اور په وجه لاندينۍ برخه ئې و سوځي. هر هغه څيز چې د زياتي اور پـه وجه ئې لاندينۍ برخه و سوځي.

**ـــــ سوے کېدل** :- د پيـو (شـودو) لانـدينۍ برخـه د زيـات اور پـه وجـه سوځېدل

**ـــــ شله ول** :- ډېر زيات کوښښ کول.

**ـــــ شلېدل** :- (۱) تکليف ور رسېدل (۲) کار ته پس کېدل.

**ـــــ ګرول خولې ته اچول** :- مجازاً ډېر زيات خوار او غريب بودل ډېره په مشکله ګذاره کول.

**ـــــ لګول** :- کښېناستل ، دمه کول.

**ـــــ لګولو ته نهٔ پرېښودل** :- يو ساعت قدرې کښېناستلو تـه نهٔ پرېښـودل ، دمه کولو ته نهٔ پرېښودل هر وخت په کار کښې اخته ساتل.

**ـــــ لګولو ته نهٔ وزګارېدل** :- هـر وخت پـه کـار کښـې بوخت ,,بودل،، ډېر ناوزګاره ,, بودل ،،.

**ـــــ واز** :- (ـ وا + ز)(پ تر ، صف ، مذ ،مو ــــ ه) کنـه وازوونکـے. مجازاً کلان کار ، ناز نخرې کوونکے.

**ـــــ وازي** :- (ـــــ وا + زي) مجازاً کلان کارې ، د ځان ښودنه ، ناز نخرې

ـــــوازي کول :- ځان ښئيل ، کلان کاري کول ، د ځان د ښئيلو دپاره ناز نخرې کول.

ـــــور کول :- (۱) لواطت کول (۲) ورانے کول ، شرار کول ، غلط کار کول.

پهـــــ خاندل :- مجازاً اړولے کار کول ، غلط کار کول.

زوړ سړے چې د ځوانۍ هوس کاندي
ورته وايه چې دا څۀ په کنه خاندې (خوشحال)

پهـــــ کنبې اور بودل :- په قلار نۀ کنبناستل. ډېر شرارتي بودل ، ډېر وران کارے ,, بودل ،،.

پهـــــ چينجے بودل ،، :- مجازاً ډېر ناقلاره بودل ، په ځاے نۀ کنبناستل ، څۀ نه څۀ وران کار کول.

پهـــــ کنبې خارښت بودل :- (وـــــ په کنه کنبې چينجے بودل)

پهـــــ کنبې ډنډه منډل :- مجازاً سزا ورکول.

پهـــــ کنبې کنبپښودل :- (طنزاً يا قهراً) ځان سره سنبالول. د کوم څيز حاجت نه لرل.

پهـــــ کنبناستل :- مجازاً ډېر زيات نقصان بيا موندل. ډېر زيات تاواني کېدل ، ټوله سرمايه يا موړي بېلل ، ديواليه کېدل.

پهـــــ کنبنول :- ډېر سخت نقصان ور رسول ، ديواليه کول.

پهـــــ کنبې لو کول ، دچا :- د چا نه وصولي کول ، د چا نه فائده اوچتول.

پهـــــ کنبې مړ گيدړ ننوتل :- (بازار) په عمر لوے کېدل ، غټ پټ او تکړه بودل

پهـــــ کېدل :- حرامي يا د اړولي طرفه پيدا کېدل. د شېطان ، شرپسند هلک په حقله وئيلے شي. د کنې پيدا.

لويهـــــ :- (لويهـــــ) (پ تر ، اس ، جـــ لوے کنې) مجازاً لوے سړے ، غټ سړے.

کنه لېچے :- (ک + نَ + لې + چے) (پ ، تر ، اس ، مذ) پستنه تلنه ، په شا تلنه.

کني :- (ک + ني) (فعل) د ,, کنل ،، مصدر نه حال فعل د کنستلو کار کونه.

کني :- (کَ + ني) (جمله) د که نۀ وي ، مخفف صورت دے. که داسې نۀ وي نو ...په بل صورت کنبې....

کني :- (کَ + ني) (پ تر ، تف) د ,, که نۀ وي ،، يا ,, که نۀ وي ،، مختصر شکل. لکه : مال کنبېږده کني اولم دې !

کنيت :- (ک + ني + ت) (ع ، اس ، مذ ، جـــــ ونه) هغه نوم چې د مور او پلار يا د زوے لور په نسبت سره وئيلے کېږي. (په عربو کنبې ددې ډېر زيات رواج ؤ. ځينې وخت د صفت يا د لقب دپاره هم راځي. لکه ابوهريره رض چې اصل نوم ئې عبدالرحمان وۀ. خو پيشوگانو سره ئې ډېره مينه ده په دې وجه ئې نوم د ,, پيشوگانو پلار ،، مشهور شۀ. په پښتنو کنبې هم رواج شته. لکه د فلاني زوے ، د فلانۍ لور ، د فلاني پلار وغېره).

کنيز :- (ک + ني + ز) (ف ، اس ، مو ، جـــــ اني) وينځه ، مېنځه.

گُنيز :- (کُ + ني + ز) (پ ، صفت) لکه: درې کُنيز ټوپک. يو قسم (اوږد) ټوپک

کنيزک :- (ک + ني + ز + ک) د ,, کنيز ،، تصغير دے. وړه وينځه وړه مېنځه ، وينځکۍ ، پينځکۍ.

کنيزه :- (ک + ني + زَ) (اس ، مو ، ج - زې) وينځه ، مېنځه (اصلاً کنيز هم مؤنث دے. خو د پښتو د قاعدې مطابق دې لفظ سره د (ه) په لگولو مؤنث جوړ کړے شوے دے. داسې مثالونه پښتو کنبې ډېر دي).

کنيسه :- (ک + نی + سَ) (ع ، اس ، مو ، جـــ سې ، کنائس) د يهوديانو عبادت خانه. (اصلاً د عبرانۍ لفظ دے)

کنيف :- (ک + ني + ف) بيت الخلا ، چارچوبې.

علم د خداے واخلي له دغه سفله ناپاکه
توئ دې په کنيف کنبې قيمتي مشک وچين نۀ شي (حافظ)

کني کبر :- (ک + ني + ک + ب + ر) (اس ، مذ ، جـــــ ان) (۱) د لرم په شان مشهور ځناور چې لکۍ نۀ لري. او په اوبو کنبې اوسي سرطان. (۲) د شمسي کال څلورمه مياشت. تيرماه.

کنې :- (ک + نې) (اس ، مو) نرۍ سپېره ، د سپېرې بچ.

کنې :- (کُ + نې) (۱) د ,, کنه ،، جمع (۲) د ,, کنه ،، اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل.

دـــــ پر بوتے :- (وـــــ د کنې پيدا)

دـــــ پل لگول / جوړول :- پوزه راښکل ، په ذلت سره معافي غوښتل.

دـــــ پيدا :- ډېر زيات شرارت کوونکے ، د بر زيات وران کارے.

دـــــ يارانه :- د بد عملۍ تعلق ، د بدکارۍ دوستي.

کنبن :- (ک + نې + ن) (انگ ، اس ، جمـ کونبن) ، د موسمي تبو (ملېريا) مشهوره دوائي ، کونبن.

کنبنگی :- (ک + نې + ن + گ + ی) (اس ، مو) د ,, کنبنگے ،، تانيث دے.

کنبنگے :- (ک + نې + ن + گے) (اس ، مذ ، جـــــ گي) د ,, کنې ،، تصغير ،، دے (۱) کنې ، وړوکے کنې (۲) بې شرمه ، بې غېرته ، بې حيا (۳) شرارتي ، وران کارے.

کنيه :- (ک + نې + يَ) (اس ، مو ، جـــــ ې) کُنيت ، هغه نوم چې مور او پلار
ته د زوے په نوم او زوے د پلار په نوم يادولے شي. لکه: ابو عبدالله.. . يا ابن جرير.

کنۍ :- (ک + ن + ی) (اس ، مو) د کبانو (مهيانو) د نيولو لوے جال.

کنے :- (ک + نے) (صف ، مذ ، جـــــ يان) کنې واله ، کنه لرونکے ، د کنې صفت.

زيړـــــ :- (ز + ي + ړ) (اس ، مذ ، جـــــ ني) د بلبلو يو قسم ، چې د کونې په خولۀ کنبې ئې بنې تکې زيړې وي. (د يوسفزيو په علاقه کنبې ډېر موندلے شي).

سورـــــ :- (سو + ر) (اس ، مذ ، جـــــ کني) د بلبلو يو قسم دے چې د کنې خواو شا بنې ئې تکې سرې وي. (د زيړ کني په مقابله کنبې).

غټـــــ :- (غ + ټ) لوې کنې واله. مجازاً غټ سړے ، لوے سړے. شتۀ من سړے.

کنړ :- (ک + نړ) (اس ، جم) قنړ ، د پوزې گنده ماده ، گرېنگ.

کنړ :- (ک + نړ) (سابقه) سابقه ده. د ,, کونړ ،، نه جوړه شوې ده. نورو الفاظو سره راځي او د کونړ توب يا کونړ والي معنې ورکوي.

کنړ والے :- (ک + نړ + وا + لے)

کنړ توب :- (ک + نړ + تو + ب)

کنړ تيا :- (ک + نړ + ت + يا) (وـــــ د ,, کونړ ،، ترلاتدې)

کناخه :- (ک + نړ + ړا + خَ) (اس ، مو ، جـــــ خې) (۱) گنجۍ (۲) ځينې وخت تور کارغۀ ته هم وائي.

کناوه :- (ک + نړ + ړا + وَ) (اس ، مو ، جـــــ وے) (۱) د لرگي جوړ شوے پېزار ، لرگين سليپر (۲) د لرگي جوړ شوے هغه خاص پېزار چې په ختو کنبې استعمالولے شي. دا ډېرې لوړې وي.

کناکے :- (ک + نړ + ړا + کے) (اس ، مو ، ج) نښې ، د جوارو ورتې کړې دانې.

**کڼ بکڼ** :- (ک + ڼ + ب + ک + ڼ)(اس ، مذ) بکره ، پنډ بکر ، هغه سپین کاڼی چې اور پرې لګولی شي۔ چقماق۔

**کڼ تیا** :- (ک + ڼ + ت + یا)

**کڼ والی** :- (ک + ڼ + وا + لی) (اس ، مذ) کوڼ والی ، اوچت نهٔ اورېدنه ، د آورېدلو د قوت کمې

**کڼ والې** :- (ک + ڼ + وا + لې)(اس مذ ، ج ــــ لي) کنډواله ، کنډر ، ورانه ،

کلي نه دي کڼ والي دي

ادي ځمه د ګران ناري دي (غاړه)

**کڼوګکې** :- (ک + ڼ + و + (ت) س + کې) (اس ، مذ ، ج ــــ کي) اوچت نهٔ اورېدونکې ، لږ شان کوڼ سړے۔

**کڼوالې** :- (ک + ڼ + ړ + و + ل)(مص) کوڼ کول ، د اورېدلو قوت ، رائل کول۔

**ځان ــــ** :- ځان کوڼ کونه ، خبرې له سره د اورېدلو توجه نهٔ ورکونه۔

**کڼولې** :- (ک + ڼ + و + لې)(اس ، مف ، مذ ، ج ــــ لي) بې نظيره ، لاثاني ، چې سارے نهٔ لري۔ کړولې لکه : کڼ ولې ځوان۔

**کڼونه** :- (ک + ڼ + و + نَ)(حمص) کوڼ کونه ، د اورېدلو قوت ، زائل کونه۔

**کڼونے** :- (ک + ڼ + و + نے)(اس ، فا ، مذ ، ج ــــ نې) کڼ وونکے ، کوڼ کوونکے

**کڼوونکے** :- (ک + ڼ + وو + ن + کے)(اس ، فا ، مذ ، ج ــــ کي) کوڼ کوونکے ، د اورېدلو قوت زائل کوونکے۔

**کڼه** :- (ک + ڼ + ه)(صف ، مو ، ج ــــ ړې / یانې) د ,, کوڼ ،، تانیث دے ۔ هغه ښځه چې د اورېدلو قوت ئې کم وي یا بېخي نهٔ وي۔

**کڼ هوځ** :- (ک + ڼ + هو + (ت) س)(صف ، مذ ، مو ــــ څه) څهٔ قدرې کوڼ ۔ هغه چې د اورېدلو قوت ئې کم وي۔ کڼ وځکے۔

**کڼ ورغوه** :- (ک + ڼ + و + ر + غ + وَ) (پ تر ، اس ، مو) د کارغانو یو غټ قسم ، وائي چې دا قسم لوے عمر لري۔ کڼه مرغۍ ، کڼاخه۔

**کڼ ورغه** :- (ک + ڼ + و + ر + غَ)(اس ، مو ، ج ــــ کڼې ورغې) ټپوس ، مړ کباز (مروت)۔

**کڼیا** :- (ک + ڼ + یا)(حرف) بې حده ، ډېر زیات ، بې اندازې لکه : کڼ ارزه۔

**کڼې** :- (ک + ڼ + ې) (اس ، مذ ، ج - ړې) کڼېږ ، د اودلو کارګاه۔

**کڼېدل** :- (ک + ڼ + ې + د + ل)(مص) کوڼ کېدل ، د اورېدلو قوت کمېدل۔

**کڼېدنګ** :- (ک + ڼ + ې + د + ن + ګ)(و ــــ کڼېدنه)

**کڼېدنه** :- (ک + ڼ + ې + د + ن)(حمص) کوڼ کېدنه ، د اورېدلو قوت کمېدنه یا بېخي نهٔ پاتې کېدنه۔

**کڼېدونکے** :- (ک + ڼ + ې + دو + ن + کے)(اس ، فا ، مذ ، ج ــــ کي) کوڼ کېدونکے ، کر کېدونکے۔

**کڼې** :- (ک + ڼ + ې) (اس ، مو ، ج)(۱) د ,, کڼه ،، جمع (۲) د ,, کڼــــه ،، اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل۔

**ــــ جارول / جار اېستل** :- تنسته اودل ، تنسته زغلول او بندول۔

**کڼۍ** :- (ک + ڼ + ۍ) (اس ، مو) دښمني ، مخالفت ، دښني ، میرځي۔

**کڼۍ** :- (ک + ڼ + ۍ) (اس ، مو) د لرګي پیاله ، لرګین کنډول ، لرګینه کاسه۔

**کڼے** :- (ک + ڼ + ے)(اس ، مذ ، ج ــــ ړي) هغه سړے چې په ښځهٔ یا بد بوئي باندې نهٔ پوهېږي۔

**کڼے** :- (ک + ڼ + ے) (اس ، مذ ، ج ــــ ړي) تنسته اودونکے۔

**کڼے** :- (ک + ڼ + ے) (اس ، مذ) بېرختونے ، جنجره (د وښو یو قسم چې په نورو وښو خېژي)۔

**کڼے** :- (ک + ڼ + ے) (اس ، مذ ، ج ــــ ړي) وړه کاسه۔

**کڼے** :- (ک + ڼ + ے) (اس جم) پروڼے ، پروین ، ثریا۔

**ــــ باف** :- (ــــ با + ف)۔

**ــــ بان** :- (ــــ با + ن) (و ــــ کڼ واله)۔

**ــــ واله** :- (ــــ وا + ل)(اس ، مذ) تنسته ادونکے ، جولا۔

**کو** :- (کو)(ف ، اس ، مذ) کوځه ، ګلۍ۔

**کو** :- (کُو)(اس ، صوت)(۱) د ,, کُو ،، په شان هغه لنډ اواز چې د بل په غوږ کښې د هغه د ویرولو د پاره ایستے شي۔ (۲) د ,, کو ،، په شان اوږد اواز ، چې د بګوره شوي مرزانو په غوږونو کښې کولے شي ۔(۳) د بل سړي (عموماً د کوڼ سړي) د متوجه کولو اواز ۔ په اورکزو کښې ئې ځینې خلک د وئیلو په معنیٰ هم وائي لکه ما ورته کو۔

**کو** :- (کو)(اس ، مذ) د ابن کوهان ، بوک۔

**ــــ به کو** :- (ــــ ب + کو) (ف تر ، تف) کوځه په کوځه ، ګلۍ په ګلۍ ، په هر ځائے۔

**کو** :- (کو)(اس ، مذ) د یوې ونې نوم دے۔ چې لرګے ئې ډېر سخت وي۔ وړې وړې پاڼې لري۔ (په هندکو کښې ,, کوه ،، غوراځکي ته وائي)۔

**کو** :- (کو)(فعل) د ,, کړو ،، مخفف شکل دے ۔ چې د ,, کړل ،، مصدر نه شرطیه فعل دے۔

**کو اپرېټر** :- (کو + آ + پ + رې + ټ + ر) (انګ ، فا ، مذ ، ج ــــ ان) پــــه پلورلو او پېرلو کښې یو بل سره اشتراک کوونکے۔

**کو اپرېټو** :- (کو + آ + پ + رې + ټ + و) (انګ ، صف) کوپراتیف ، په خرڅولو او په خرید کښې یو بل سره ګډوالے او تعاون۔

**کو اپرېشن** :- (کو + آ + پ + رې + ش + ن)(انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) په خپله کښې یو بل سره امداد ، باهمي تعاون۔

**کواته** :- (ک + وا + ت) (صف ، مو) بې مغزه ، بې عقله ، پوچ۔

**کواټ** :- (ک + وا + ټ)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د اوبن څلور کلیز بچے۔

**کواټ** :- (ک + وا + ټ)(اس ، مذ ، ج ــــ ټې) د دربو یا څلورو کالو اوبن چې نوے نوے باري شوے وي۔

**کواټ** :- (ک + وا + ټ)(و ــــ کوهاټ)۔

**کواټر** :- (ک + وا + ټ + ر) (انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه)(۱) د کوارټر بدل شکل دے ۔ وړوکے کور ۔(۲) خصوصاً هغه وړوکے کور کوم چې د نوکرانو د پاره لویو بنګلو او ماڼو کښې جوړولے شي۔

**کواټکے** :- (ک + وا + ټ + کے)(اس ، مذ ، ج ــــ کي) د ,, کواټ ،، تصغیر دے۔ د دوه ؤ کالو اوبن۔

**کواټل** :- (ک + وا + ټ + ل) (و ــــ کوټل)

چې ئې زړهٔ زما کواټهٔ

هغه د یو خدا ے وراټهٔ (دولت)

**کواټه** :- (ک / ک + وا + ټ)(صف ، اس ، مذ) ډېرې زیاتې خبرې کوونکے ، خبر لوڅے ، بکواسي ، بد ژبې (ځبې) خراب ، خولهٔ خوزوونکے ، هرزه ګو۔

**کواټۍ** :- (ک + وا + ټ + ۍ)(و ــــ کوهاټۍ)

**کواټۍ** :- (ک + وا + ټ + ۍ)(اس ، مو) د بلورو د لوښې قُتـه ، چې بلوري په کښې ورغورزوي۔ کوټے ، کوالے کواټے۔

**کواټے** :- (ک + وا + ټے)(و ــــ کوهاټے)

**کوارټر** :- (ک + وا + ر + ټ + ر)(۱) (و ــــ کواټر)(۲) (انګ) څلورمه برخه۔

**ــــ ګارډ** :- (ــــ ګا + ر + ډ) (انګ ، تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) په چاونۍ کښې فوځي حوالات چې فوځي قېدیان په کښې د سزا په طور ساتلے شي۔ د دې ځاے سخت حفاظت کولے شي ۔ عموماً د دې په خوا

کنبې د وسلې خزانه (مېګزين) هم وي.

**ـــــ ماستر** :- (ما + س + ټ + ر) (انګ، تر، اس، مذ، ج ـــ ان) په فوځ کنبې يوه عهده. د چا په ذمه چې د چاونۍ د فوځيانو دپاره رسد، وردۍ، خشاک، ستېشنري او نور داسې ځيزونه ساتل او مهيا کول وي

**کواچه** :- (ک + وا + ر + چَ) (اس، مو، ج -چې) د "کواره" تصغير دے. هغه بوره چې په کنبې مېوې دانې وغېره وړې شي. د مېوو د وړلو ټوکرۍ (چې دوه يو ځاے شي او په خرۀ وغېره بار کړے شي) وړه کجاوه.

د نرو لښتو نه جوړه شوې ټوکرۍ، کهاره.

**کوارډي نېشن** :- (کو+ا+ ر + ډي + نې + شن) (انګ، اس، مذ) انسجام، انتظام، نظم.

**کواره** :- (ک + وا + رَ) (اس، مو، ج ـــ رې) د مېوو دانو وغېره د وړلو لويه بوره، د مېوو دانو (يا د سبزۍ وغېره) د وړلو لويه کجاوه.

**کواره** :- (ک + وا + رَ) (اس، مو، ج ـــ رې) د مچو ګګ.

**کواړه** :- (ک + وا + ړَ) (اس، مو، ج ـــ ړې) د پړي نه جوړه شوې حلقه چې په مېنځ کنبې ئې ټکۍ (هدف) جوړه شوې وي. د موچې د ويشتلو دپاره پکارولے شي. (ټکۍ يا د ګل زړي نه چاپېره دائرې ته هم کواړه وائي. چې غشے د دغې دائرې دننه ولګي. نو هم څۀ قدرې کاميابي ګڼلے شي.

د دغـا غشے کـه ولم هم له دار وي که ئې پلم
پوره نۀ شي په کواړه کنبې هېڅ پرې نۀ پوهېږم زۀ (علي خان)

**کواړے** :- (ک + وا + ړے) اس، مذ، ج ـــ ړي) د اوسپنې هغه اله چې سر ئې کوږ وي. په دې باندې واوره ماتولے شي.

**کوازه** :- (ک+ وا+ زَ) (اس، مو، ج ـــ زې) د لرګو نه جوړ شوے هغه اوچت ځاے چې ګلکاران (معماران) پرې ودرېږي او د ېوال وغېره خېژوي. قوازه.

**کواسه** :- (ک + وا + سَ) (اس، مذ) د زوے يا د لور نمسے (نوسے) کړوسے.

**کواغی** :- (ک + وا + غ + ی) (اس، مو) يو قسم وړوکے کارغۀ، چې د مرۍ بنې ئې لړې سپينې وي. کاغی، راغچکه.

**کواکب** :- (ک + وا + ک + ب) د کوکب جمع، (و ـــ کوکب)، ستوري

کواکبو مـکب پرمخې اړتاو کړم
لکه ولوېږي راکب د اس له شانه (حافظ)

**ـــــ په زمکه توبول** :- لويه کارنامه کول.

ګفتګو ئې د حميد توئې کړۀ
کـوز پــه زمـکـه کـواکب (حميد)

**ثابت ـــــ** :- (ثا + ب + ت ـــ) (عپ تر، اس، ج) هغه ستوري چې خپل ځاے نۀ بدلوي او همېش هم په يو ځاے کنبې ښکاري.

**سيار ـــــ** :- (س + ي + يا + ر ـــ) (عپ، تر، اس، ج) هغه ستوري چې په يو خاص دود، همېشه خپل خپل ځاے بدلوي. او په حرکت کنبې اوسي. دغو ته "سيارې" وائي. (واحد سياره).

**کوال** :- (ک + وا + ل) (اس، مذ، ج ـــ ان) هغه سړے چې په لويه کځوړه يا اټلۍ کنبې مال خرڅوي.

**کوال** :- (ک + وا + ل) (اس، مذ، ج ـــ ونه) (و ـــ کهول)

**کوال** :- (ک + وا + ل) (مص) خيال ساتل، جمع کول، وده يا نشوونما موندل، لوے کېدل.

**کواللمپور** :- (ک + وا + ل + لُ + م + پو + ر).

**کوالالمپـور** :- (ک + وا + لا + ل + م + پـو + ر) (اس مـع) د مـلا ئشـيا دارالحکومت دے.

**کواله** :- (ک + وا + لَ) (اس، مو، ج ـــ لې) فرياد، نارې سورې اوسنی نۀ دي چې تۀ ژاړې کوالې قديمي دي د دې زالې نا خوالې (نيرنګ عشق)

**کواله** :- (ک + وا + لَ) (و ـــ قباله)

**کوالے** :- (ک + وا + لے) (اس، مذ، ج ـــ لي) هغه قته (وړوکے ډوغل چې په کنبې بلوري واچوي، کوتے.

**کواندے** :- (ک + وا + ن + دے) (اس، مذ، ج ـــ دي) يو قسم مهار او د اوښ تېرسرے. چې ډېر ښکلي رنګ شمکلي ورسره جوړ شوې وي او د ناوې اوښې ته اچولے شي.

**کوانۍ** :- (ک + وا + نۍ + ی) (اس، مو) د ماشومانو د يوې لوبې نوم دے چې بلورو سره کولے شي. کوتے، کوالے.

**کوانے** :- (ک + وا + نے) (اس، مذ، ج ـــ نې) قته، کوتے، هغه وړوکے شان ډوغل چې هلکان په لوبو کنبې په کنبې بلوري ورغورزوي.

**کوائف** :- (ک + وا + ي + ف) د "کيفيت" جمع ده.

**کوايت** :- (ک + وا + ي + ت) (اس، مذ) (۱) عکسري تعليم، فوځي زده کړه (۲) قواعد، قوانين.

**کواي کواي** :- (ک + وا + ي + ک + وا + ي) (اس، صوت) د ګيدړ اواز.

**کوب** :- (کو + ب) يا (ک + و + ب) په ملا کنبې بهر ته وتې حصه. د غوايانو د څټ په خوا کنبې بهر ته وتې حصه. کُب، قُب، کوهان.

**د ـــــ وچوب بودل** ،، د وهلو ټکولو وړ "بودل"، د سزا لايق

دا د کوب وچوب دي دا څو اقوامه
اول عــورتـــه، واوره اے خامه (خوشحال)

**کوبالټ** :- (کو + با + ل+ ټ) (انګ، اس، مذ) د داتونو يو عنصر دے چې د اوبو نه يو په اتۀ نيمې برخې درونډ وي. يو قسم سپين رنګې نقريبي دات (فلز) چې د وسپنې او د نيکل نه پيدا کولے شي.

**کوبړ** :- (کو + ب + ړ) (صف، مذ، مو ـــ ه) مړاوے، پژمرده، خزان وهلے، کومړ

**کوبل** :- (کو + ب + ل) (اس معرفه) مشهور ښهر، کابل کوبل ته ما څا کوبل زندان دی (وز).

**کوبلکه** :- (کو + ب + ل + کَ) (اس، مو، ج ـــ کې) يو قسم ډنډر واله سبزي، چې پخولے شي. پوڅکۍ، پرپره. خرمېړه، مرخېړے.

**کوبن** :- (کو + ب + ن) (اس، مذ، ج ـــ ونه) ګينټري، د زمکې د کنستلو اله، کلنګ.

**کوبۍ** :- (کو + ب + ی) (اس، مو) ګنبد، قبه.

**کوبۍ** :- (کو + ب + ی) (اس، مو) لړې، چې په مني کنبې د ګډو لم نۀ ډک کړے شي. په ئې اوچ کړي او په ژمي (ځمي) کنبې ئې پخوي.

**کوبے** :- (کو + بے) (صف، مذ، ج ـــ بي) کب واله سړے، کبړے.

**کوبے** :- (کو + بے) (اس، مذ، ج ـــ بي) دسترخوان.

**کوپ** :- (کو + پ) (اس، مذ، ج ـــ ان) ټوپ، دانګه، يا تيزه منډه.

**ـــــ اچول** :- (مص) ټوپ وهل، دانګل، ترپلل.

**ـــــ لګول** :- کنايه: تبنتېدل.

**ـــــ کول** :- ټوپ وهل، دانګه وهل، تيزه منډه وهل، په دانګو تلل.

**کوپ** :- (کو + پ) (اس، مذ، ج ـــ ونه) د اوښ کوهان.

**کوپ** :- (کو + پ) (انګ، اس، مذ، ج ـــ ونه) پياله، کپ، د چايو لويه پيالۍ

زمـا ورور پـر هـوټل ناست دے
د شير چائې کوپ ئې په لاس دے (غاړه)

**کوپ** :- (کو + پ)(صف ، مذ ، ج - ان ، مو - ه) کړوپ ، کوږ ، کب واله.

**ـــــــ کېدل** :- کړوپ کېدل ، شاتوغ کېدل ، کوتاریدل ، کوږ کېدل.

**کوپا** :- (کو + پا)(اس ، صف ، مذ) هغه خر چې د یرغه اس په شان رفتار کوي.

**کوپر** :- (کو + پا + ر)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه)(۱) ظلم ، ستم ، ناتار

په هېڅ ځای باندې ئې ګوتې ایږدې نهٔ شي
دغــه دوه ســترګې ئې لاکـو کـوپارونه (عبدالقادر)

(۲) کمال ، عجیبه کار

واه واه ســړیــه د تـــا کــارونــه
په خپل حکمت کړې څهٔ کوپارونه (ایضاً)

**کوپال** :- (کو + پا + ل)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د لرګو نه جوړ شوی لوړ تخت

**کوپان** :- (کو + پا + ن)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د اوښ کوهان

**کوپتیا** :- (کو + پ + ت + یا)(اس ، مذ) ناوړه ، پرېشانه ، ګډ وډ

چې پــه اصل بــګتیا وو کــوپتــیا وو
رنګ ئې ورک شه که اتهٔ وو که اتیا وو (نیرنګ عشق)

د ریبنتینې خوب ریبنتیا وي
کــوپتــیــا د کــوپتــیـا وي (زړه پانګه)

(شرعت اسلام)

**کوپره** :- (کو + پ + رَ)(اس ، مو ، ج ـــ رې)(۱) ناریَل ، جوزهندي (۲) ځینې وخت د کوپرې نه ایستلې شوي غوړو (تېلو) ته هم ووائي (۳) ناریل مغز.

**د ـــــ تېل** :- (ـــــ تې + ل)(فپ ، تر ، اس ، جم) هغه تېل چې د کوپرې نه ووزي

**کوپرېشن** :- (کو + پ + رې + ش + ن)(و ـــ کوآپرېشن) مرسته ، تعاون.

**کوپړه** :- (کو + پ + ړَ)(و ـــ کوپره)

**کوپړۍ** :- (کو + پ + ړ + ۍ)(اس ، مو) د سر هډوکی ، کُپړۍ ، ککرۍ.

**کوپړۍ** :- (کو + پ + ړ + ۍ)(اس ، مو) د ځرمنې نه جوړ شوی دبلی ، کوپۍ.

**کوپړې** :- (کو + پ + ړې)(اس ، مذ ، ج ـــ ړي) د زنګون شاته قتنه.

**کوپړئین** :- (کو + پ + ړ + ئ = ن)(اس ، مو)(۱) د موتیـازو کڅوړه ، کــوپـهئین (۲) ماشـومان د حـلال شـوو څـاروو کـوپرئین پـه بـادو ویړخوي او لوبې ورسره کوي.

**کوپلتې** :- (کو + پ + ل + تې)(اس ، مذ) یو قسم وړه شړۍ ، چې ښکلي نقش داره وي -چې د وادهٔ پـه ورځ د ناوې پـه اوښ باندې د ډول دپاره اچولی شي.

**کوپله** :- (کو + پ + لَ)(اس ، مو ، ج ـــ لې) یو قسم مرغۍ چې د چرچنې نه لږه غټه وي او په سر څونډې لري -سپېر کونډه ، تپوازن ، څونډۍ ورته هم وائي.

**کوپله** :- (کو + پ + لَ)(اس ، مو ، ج ـــ لې) ناموزونه او بې خونده ګړونجه.

**کوپلۍ** :- (کو + پ + ل + ۍ)(اس ، مو) د زین قاش ، کوپۍ.

**کوپن** :- (کو + پ + ن)

**کوپــون** :- (کو + پـو + ن)(انګ فر ، اس ، مـذ ، ج ـــ ونه) هغه وړوکی کاغذ یا ټکټ شان د کوم په بدل کښې چې د خوراک د اغوستنې یا نور داسې څیزونه پـه ټاکلي قیمت اخستی شي -یا پـرې څهٔ انعـام وغیـره اخستی شي.

**کــوپهئین** :- (کو + پ + ه + ړ + ئ + ن)(اس ، مو) کوپړئیین ، د متیـازو کڅوړه ، مثانه.

**خولهٔ ـــــ کول** :- شونډې بندول او په باد سره وښکې پړسول. مجازاً خفه او مرور کېدل.

**کوپن هاګن** :- (کو + پ + ن + ها + ګ + ن)

**کــوپن هــېګن** :- (کـو + پ + ن + هـې + ګ + ن)(اس مع) د ډنمارک د ملک دارالحکومت دی.

**کوپـول** :- (کـو + پ + و + ل)(مص) کړوپ کول ، کږول ، منحني کول ، چپړې کول.

**کوپونګ** :- (کو + پ + و + ن + ګ)(و ـــ کوپونه)

**کوپونه** :- (کو + پ + و + نَ)(حمص) کړوپونـه ، کږونـه ، کـوب راوښکنه ، کوږ کونه ، منحني کونه.

**کوپوونکی** :- (کـو + پ + وو + ن + کی) کړوپـوونکی ، کـړوپ کـوونکی ، کږوونکی ، کُب راوښکونکی.

**کوپه** :- (کو + پَ)(اس ، مو ، ج ـــ پې)(۱) په دېوال کښې هغه وړوکې شان طاخ چې د ډیوې دپاره جوړولی شي . (۲) په کوهي کښې دواړو غاړو ته د پښو د کښېښودلو ځایونه.

**کوپه** :- (کو + پَ)(اس ، مو) د سر د وېښتو د جوړولو او لنډولو یو خاص قسم.

**کوپه** :- (کو + پَ)(اس ، مو ، ج ـــ پې) د میزرې وغېره نه جوړې شوې هغه پیالۍ شان ، کومې چې د اړټ د سنډا سترګو ته تړلی شي -چې د اړټ د ګرځولو په وخت څهٔ نهٔویني.

**کوپه** :- (کو + پَ)(اس ، مو) کاږهٔ ، کاږهٔ وېلنی ، کلوو بادیان.

**کوپۍ** :- (کو + پ + ۍ)(اس ، مو)(۱) د ځرمنې نه جوړ شوی وړوکی ډبلی چې عموماً تېل وغېره پـه کښې کښېښـودی شي . (۲) د اوسپنې یـا د بـل کـوم دهـات (یا د پلاستیکو) جوړ شوی وړوکی ډبلی چې په خولهٔ کښې ئې نرۍ څوکه وتې وي -او په د باوۆلو سره څاڅکی تېـل تـرې راتوئېږي -د مشینونو د پـرزو لـه د تېـل ورکـولـو دپاره پکارولی شي -د تېلو کوپۍ.

**ــــــ خولهٔ** :- (۱) پړڅېدلي انتګي (۲) مجازاً مرور او خفه.

**د تېلو ـــــ** :- (د + تې + لو ـــــ)(و ـــ کوپۍ (۲)

**کــوپۍ** :- (کـو + پ + ۍ)(صف مو) د "کـوږ" ، تانیث دی -کبۍ ، کبړۍ ، کړوپه.

**کوپۍ(۳)** :- (کو + پ + ۍ)(اس ، مو) د بلوط د دانو یو پوستکی او بوس.

**کوپۍ(۴)** :- (کو + پ + ۍ)(اس مو) د زین قاش ، کوپلۍ.

**کوپې** :- (کو + پې)(اس ، مذ) د غوا د لوشلو لوښی ، لوغۍ ، غوا لوشی ، د کې ، ګوډې (کاکړ) ډیبۍ ، دګۍ.

**کوپې** :- (کو + پې)(صف ، مذ ، ج ـــ پي) کبړی ، کړوپ ، کوږ.

**کوپېدل** :- (کو + پې + د + ل)(مص) کړوپ کېدل ، کوږ کېدل ، کږېدل منحني کېدل.

**کوپېدنه** :- (کو + پې + د + نَ)(حمص) کړو پېدنه ، کږېدنه ، کُب راوتنه منحني کېدنه.

**کوپېدونکی** :- (کو + پې + دو + ن + کی)(پ تر ، اس مف ، مذ ، ج ـــ کي) کړوپ کېدونکی ، کوږ کېدونکی ، کږېدونکی ، منحني کېدونکی.

**کوت** :- (ک + ت)(اس مذ ، ج ـــ ونه) چین ، قات ، ګونجیلک ، کرټ ، ګونجه ، پلېټ ، چونړ (په جامه وغېره کښې ګرونجه).

**ـــــ کول** :- ګرونجې کول ، پلېټ جوړول ، قات کول ، کرټ کول.

**کوت** :- (ک + و + ت)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ترخ ، بغل.

**کوت** :- (کو + ت) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه کنستلے شوے ځاے چې د صحرا خلک په کښې په ژمي (جمي) کښې ورغوي وغېره محفوظ ساتي.

**کوت** :- (کو + ت) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) خالي ، ځناور چې ګېډه ئې خالي وي

**کوت** :- (کو + ت) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) تش (ګېډے) اوږے تږے

بې اوبو نـۀ وي د تږي فکر
اوبـۀ اوبـۀ وي د تـږي ذکر
بلـه خـبره وربـاندې موت وي
هم هغه وائي چې پسې کوت وي (بابو جان)

**کوت** :- (کو + ت) (اس ، مذ) قصابي ، حلالونه ، وژنه

چې د عـمـر فـصـل پوخ شو
مرګ منصف تعين پرکوت شو (ارزاني)

**کوتار** :- (کو + تا + ر) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) مشغول ، مصروف ، ګېر ، ګرفتار (۲) کړوپ ، پړمخے.

ـــــــ **کېدل** :- ګرفتار کېدل ، ګېرېدل ، اخته کېدل لکه : په څۀ بلا (یا غم) کوتار یم.

**کوتار** :- (کو + تا + ر) (اس ، مذ) شدت ، غصه ، تاو سورېدنه.

**کوتالی** :- (کو + تا + ل + ی) (اس ، مو) هغه خاورین وړوکے شان لوښے چې زرګران په کښې سرۀ او سپین زر ویلې کوي. کوټیالی ، (هـ ـــ کټهالی)

**کوتان** :- (کو + تا + ن) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) په زمکه کښې جوړ (ژور) غار کوم چې په وښو مښو پټ کړے شي. او په ژمي (جمي) کښې په کښې ورغومي وغېره محفوظ ساتلے شي. کوت.

**کوتان** :- (کو + تا + ن) (اس ، ج) ججوري ، حواصل.

**کوتان** :- (کو + تا + ن) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (قندهار) کوتنـه ، کوټنـه ، کتنه ، مشهور مارغۀ سپین رنګ لري. چې وازده ئې په داروګانو کښې استعمالېږي او ډېره قیمتي وي.

**کوتاه** :- (کو + تا + ه) (ف ، صف ، مذ ، مو - هه) لنډ ، وړوکے ، کچ ، لږ.

ـــــــ **بین** :- (بی + ن) (ف تر ، صف ، مذ ، مو - ه) لنډ لیـدونکے ، لنـډ نظرے ، هغه چې دور اندېش نۀ وي.

ـــــــ **دست** :- (ـــ د + س + ت) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) لنډ لاسے ، هغه چې لاس ئې لنډ وي. شوم (۲) کم قوته ، کمزورے.

ـــــــ **فکر** :- (ـــ ف / في + ک + ر) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) لنډ فکر کوونکے ، د لږ وخت فکر نۀ کوونکے ، (د دور اندېش ضد)

ـــــــ **قد** :- (ـــ ق + د) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) لنډ قد والـه ، مندرے ، بونا.

ـــــــ **کول** :- وړوکے کول ، لنډول.

ـــــــ **نظر** :- (ـــ ن + ظ + ر) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) لنډ نظرے ، هغه چې نظر ئې تر لرې پورې نۀ رسي. عاقبت یا انجام ته نۀ کتونکے.

ـــــــ **نظري** :- (ـــ ن + ظ + ري) (ف تر ، اس ، مو) لنډ نظري ، لـرې نظر نۀ رسېدنه یا لرې نظر نۀ کونه. غفلت ، ناعاقبت اندېشي.

**لاس ـــ کول** :- لاس لنډول ، لاس اخېستل ، د دخل ورکولو نه لاس اخېستل.

**کوتاهي** :- (کو + تا + هي) (ف تر ، اس ، مو) کمے ، نقص ، قصور ، خطا ، غفلت ، بې غوري ، لاپروائي.

ـــــــ **کول** :- کمے کول ، کمے پرېښودل ، پوره کوښښ نۀ کول ، کسر پرېښودل. (عموماً په نفي کښې استعمالېږي) قصور کول ، خطا کول.

ـــــــ **کېدل** :- غلطي کېدل ، قصور کېدل ، خطائي کېدل ، کمے پاتې کېدل ، نقص پاتې کېدل.

**کوتخه** :- (کو + ت + خَ) (اس ، مو) د وچ کړې پنیر یو قسم. چې تروې (شوملې) ګرمې کړې شي او اوبۀ ترې لرې کړې شي او چې کومه ماده پاتې شي هغې ته کوتخه وائي.

**کوتر** :- (کو + ت + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) کونتر ، کبوتر ، د کونترې نر (په پښتو کښې ئې جمع عموماً ,,کوترې،، استعمالېږي ، ,,کوتران،، کم کوز وئیلے شي.

ـــــــ **بازي** :- (ـــ با + زي) (عپ تر ، اس ، مو) د کوترو ساتنه ، کوتر بازي.

**کوتر** :- (کو + ت + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) لویه خربوزه چې کربښې لري.

**کوترام** :- (کو + ت + را + م) (و ـــ کوترم).

**کوترغاړے** :- (کو + ت + ر + غا + ړے) (اس ، مذ) د قناویز یو قسم دے.

**کوترکے** :- (کو + ت + ر + کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) وړوکے کوترے ، د سپي وړوکے بچے (د کوترے تصغیر دے)

**کوترم** :- (کو + ت + ر + م) (صف) (۱) جمع کېدنه ، راغونډېدنه ، ټولېدنه (۲) پړمخې پرېوتنه.

ـــــــ **کول** :- (۱) راغونډول ، راټولول ، جمع کول (۲) پړمخے غورزول.

**کوترو** :- (کو + ت + رو) د ,,کوترې،، (جمع) اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل.

ـــــــ **رودل** :- کنایه : ډېر زیات اوږے کېدل.

**کوتره** :- (کو + ت + رَ) (اس ، مو ، ج ـــ رې) کونتره ، کبوتر

د علي خان د زړۀ کوتره در قربان شه
بـــرېـــر راشه د اشنا د سترګو بازه (علي خان)

**کوتره** :- (کو + ت + رَ) (صف ، مو) صفا ، پاک ، سوتره ، لمانځے.

**کوتره** :- (کو + ت + رَ) (صف ، اس ، مو ، ج ـــ رې) (ګیاه وغېره) وړوکے وړوکے پرې کړې شوې ، په ټوکا سره وړه وړه پرېکړې شوې (ګیاه وغېره)

ـــــــ **کول** :- د ځارووو دپاره ګیاه ، نرې جوار وغېره په ټوکا (یا د مشین په ذریعه) واړۀ واړۀ پرې کول. (فشار په ,,کوتره،، باندې دے).

ـــــــ **کول** :- وړې وړې ټکړې کول. مجازاً ډېر زیات وهل ټکول.

**کوترے** :- (کو + ت + رے) (اس ، مذ ، ج ـــ ري) د سپي وړوکے بچے.

**کوترے** :- (کو + ت + رے) (اس ، مو ، ج ـــ ري) د کوټې د ستن دپاسه د کښېښودلو بالښتکے ، چنتے.

**کوترے** :- (کو + ت + رے) (اس ، مذ ، ج ـــ ري) هغه الـه کومه چې د ارټ چپکلۍ غاښو سره لګېدلې وي. او ارټ په بېرته راګرځېدو ته نۀ پرېږدي.

**کوترے (۳)** :- (کو + ت + رے) (اس ، مذ ، ج ـــ ري) د ټوپک ، تماچې هغه پرزه د کومې په راښکلو چې ټوپک ، تماچه ډز کوي.

ـــــــ **راښکل** :- د ټوپک تماچې د چلولو دپاره کوترے (خاص پرزه) په ګوته راښکل.

**کوترے غوندے** :- (کو + ت + رے + غُ / غو + ن + دے) (پ تر ، اس ، مذ) لویه بوره ، هغه لویه بوره چې په اوښ باندې بارولے شي.

**کوتړه** :- (کو + ت + ړَ) (اس ، مو ، ج ـــ ړې) بغل ، ترخ ، ګرېوان ، ګروه.

**کوتغالے** :- (کو + ت + غا + لے) (اس ، مذ ، ج ـــ لي) د غرۀ په لمن کښې یا په ډېره ډېرۍ کښې وړوکے شان ځاے چې مخ ئې نمر (نور) ته وي.

**کوتک** :- (کو / کُو + ت + ک) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) غټ لرګے (چې په لاس کښې ګرځولے شي) عموماً د جنګ جګړې دپاره پکارېږي. وړوکے ډانګ. (۲) مجازاً بې کاره ، کم عقل ، هېڅکاره سړے.

**ـــــــبــازي**: - (ـــــــبـا + زي) (فـپ تـر ، اس ، مـو) کوتـک چلـول ، پـه کوتکونو سره جنګ کول ، يو بل په کوتکونو وهل.

**ـــــــماري**: - (ـــــــما + ري) (و ـــــ کوتک بازي)

**ـــــــوهل**: - جنګ کول ، مقابله کول ، ډنډه ماري کول . خبره د خدا ے دپاره کوه کوتک د يار عزيز دپاره وهه (متل)

**تش ـــــ**: - (ت + ش ـــــ) (پ تر ، صف) بې کاره ، کم عقل ، هېڅکاره سړے ، بې ښې سړے.

**کوتکه**: - (کو + ت + کَ) (اس ، مو ، ج - کې) کوتنه ، (مشهور مرغۍ)

**کوتل**: - (کو + ت + ل) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) دره ، غاښے ، پېچومے.

**کوتل**: - (کو + ت + ل) (اس ، مذ) هغه ګډ چې وارۀ وارۀ غوړونه لري.

**کوتل**: - (کو + ت + ل) (اس ، مذ) (۱) هغه اس چې د بل اس سره د امداد په طور فالتو بوتلے شي. (۲) هغه اس چې بادشاهانو او نوابانو سره خالي بوتلے شي. يدک.

**کوتل**: - (کو + ت + ل)

**کوتلل**: - (کو + ت + ل + ل) (مص) (۱) پـرې کـول ، غوڅـول ، زخمـي کـول ژوبلول

چې ئې تېغ د زرکـو سـترګو تل کوتلم

چې زړۀ سوے په لبان کښې نۀ وو نۀ شۀ (بېدل)

(۲) حلالول ، ذبح کول (۳) د څاروي نه په لاسونو څرمن وښکل.

**ـــــــځاے**: - (ـــــــ (د) زا + ئے)

**ـــــــځے**: - (ـــــــ (د) زے) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه)

د حلالي ځاے ، ذبح خانه ، قصاب خانه ، کام بېله ، بونچهړي.

**کوتـل**: - (ک + و + ت + ل) (مص) څرمنې وښکل ، پوست وښکل . لوړل لـه پوسته کول.

**کوتلې**: - (کو + ت + ل + ی) (اس ، مو) هغـه پرتـوګ يـا کپـړه چـې د مـړي پـه کفن کښې د پرتوګ په ځاے استعمالېږي.

**کوتلے**: - (کو + ت + لے) (اس ، مف ، مذ ، ج - لي) حلال کړے ، ذبح کړے

هسې ډوب يم ستا د غم په درياب تللے

چې ماهي غـونـدې بې تېغ يمه کوتلے (رحمان بابا)

**کوتندرے**: - (کو + ت + ن + د + رے) (اس ، مذ ، ج ـــــ ري) وړوکے ډوغـل يا کوهے چې سړے پرې ودربدے شي. غوچانے ، کوندرے.

**کوتنه**: - (کو + ت + نَ) (اس ، مو ، ج ـــــ ني) لنډ پرتوګ.

**کوتنه**: - (کو + ت + نَ) (حمص) حلالونه ، ذبح کونه ، پرې کونه ، قطع کونه.

**کوتنه**: - (کو + ت + نِ) (اس مو ، ج ـــــ ې) د مرغو مارغانو ججوره.

**کوتو**: - (کو + تو) (اس ، مذ ، ج ـــــ ګان / ان) يـو قسـم مرغـۍ ده . ډبـره ، خراړه

**کوتوال**: - (کو + ت + وا + ل) (و ـــــ کوټوال)

**کوتوالے**: - (ک + و + ت + وا + لے) (اس ، مذ) ګـــړونجن والے ، ګـــړونجے ګړونجے ، چيچړوالے ، ګونجېلکې.

**کوتـول**: - (ک + و + ت + و + ل) (مـص) ګـونجې ګـونجې کـول ، ګړونجـې ګړونجې کول ، قات قات کول ، پلېټونه جوړول.

**کوتونه**: - (ک + و + ت + و + نَ) (حمص) ګړونجې ګړونجې کونه ، ګونجلک کونه ، قات کونه.

**کوتونے**: - (کو + تو + نے) (اس مذ) هغه خاص ګډ ، چې مختلفو رنګونو سره ښائسته کړے او ډول کړے شي او دناوې کور ته وړے شي.

**کوتوونکے**: - (ک + و + ت + وو + ن + کے) (اس فـا ، ج ـــــ کـي) ګـړونجے ګړونجے کوونکے ، ګونجې ګونجې کوونکے ، قات کوونکے.

**کوته**: - (کو + تَ) (ف ، صف ، صف) وړوکے ، لنډ ، منـدرے ، بونـاګے ، لنډ قـد واله.

**ـــــــ اندېش**: - (ـــــــ ا + ن + دې + ش) (ف تر ، صف ، مذ ، مـو ـــــ ه) لنډ فکر لرونکے ، د لرې وخت فکر نۀ کوونکے ، (د دوراندېش ضد دے) لنډ فکرے.

اور اوبۀ په يوۀ ځاے نۀ جمع کېږي

چېرته دين، چېرته دنيا کوته اندېش (حميد)

**ـــــــ ګېډه**: - خالي ګېډه ، تشه ګېډه

که د زړۀ دې چې وجود ئې نوراني شي

واخـله پنـد لـه کـوتې ګېډې له فلکه (حميد)

**ـــــــ نظر**: - (ـــــــ ن + ظ + ر) (و ـــــ کوتاه نظر)

**کوتۍ**: - (ک / کو + ت + ی) (و ـــــ قطي)

**کوتۍ**: - (کو + ت + ی) (اس ، مو) د يو بوټي نوم.

**کوتے**: - (ک / کو + تے) (صف) ځينې وخت وړوکي ماشوم تـه مخـاطبې پـه وخت وائي. لکه : يه کوتے دلې راشه.

**کوتے**: - (کو + تے) (اس ، مذ ، ج ـــــ تي) کوترے ، د سپي وړوکے بچے.

**کوتي**: - (کو + تي) (صف) کوت ، تش ، خالي.

**ـــــــ ګېډه**: - (ـــــــ ګې ، ډَ) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـــــ ډې) خالي ګېډه ، تشه ګېډه.

رباب کـوتي ګېـډه ژاړي ستا له غمه

مينا ويني له خولې توئې کړې په لق بق (حسېن)

**کوتي کوتي**: - (ک / کو + تي + کُ / کو + تي) (اس صـوت) د سـپي خـان طرف ته د بللو دپاره وئيلے شي. ځينې خلک ,, کوتے کوتے ،، هم وائي. (عموماً د کوترې د بللو دپاره پکارولے شي)

**کوتي لال**: - (کو + تي + لا + ل) (اس ، مذ) د يو بـوټي او د هغـې زېـو او دانـو نوم ، دا دانې ډېر شوخ سور رنګ لري. او په خوند ترخې وي.

د دانا او د نادان صحبت وي هسې

لکه ګډ شي و بله لعل او کوتي لال (رحمان بابا)

**کوتے**: - (کو + تے) (اس ، مذ ، ج ـــــ تي) (۱) ګټ ، ګوټ ، زاويـه ، کـنج (۲) د زنـې قُتـه (۳) هغـه قتـه ، ډوغـل کـوم چـې د څنګـل يـا د زنګـون لاتدينۍ برخه کښې وي. (۴) وړه قُته يا ډوغل چې په هر څيز کښې وي.

**کوټ**: - (کو + ټ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) قلا ، قلعه ، مورچـه بنـد ځـاے ، هغـه ځـاے چـې لـوے لـوے ديـوال تـرې چاپېره وي . (۲) د ځينـو کلـو ځايونو په نومونو کښې راځي . لکه سخاکوټ ، په دې صورت کښې ضروري نۀ ده چې هلتـه دې قـلا هـم وي . ځکـه د کلي بانډې يا د ګړۍ معنې ورکوي.

**ـــــــ پناه کول**: - قلا او پناه جوړول ، د بچ کېدو او محفـوظ پـاتې کېـدو ځاے جوړول.

**ـــــــ ساب**: - (ـــــــ سا + ب) (پ تر ، اس ، مذ) دکوټ (قلا) مشر.

**ـــــــ مشر**: - (ـــــــ م + ش = ر) (و ـــــ کوټمشر).

**کوټ**: - (کو + ټ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) انبار (۲) ګنې تـوپکې چې يو ځاے ودرولے او د بره نه وترلے شي.

**کوټ**: - (کو + ټ) (هـ ، اس ، مذ) نا سره والے ، کوږه والے ، ګډون ، درغلې

راستي حصـن د دل کـوټ دے

په زړۀ کوټ شو چې په کوټ دے (ارزاني)

(هند ـ کهوټ)

**کوټ** :- ( کو + ټ )(انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) يو قسم جامه ده .چې د قميص د پاسه اغوستے شي .مخکينۍ حصه ئې پرانستې وي او په بټنو بندولے شي لوے لوے کالرونه لري .په اوږد والي کښې مختلف قسمه وي .د يورپ نه ئې رواج زمونږ ملکونو ته راغلے دے .

**ـــــ بند**:- ( ـــــ ب + ن + د ) ( انګ ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د کوټونو وغيره د ځړولو ( زوړندولو ) څيز .لکه : کالي په کوټ بند باندې ځړول .

**وور ـــ** :- ( و + و + ر ـــــ )(انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) لوے کوټ ، چې د وړوکي کوټ د پاسه اچولے شي .د مغربي فېشن بالاپوش .

**باران ـــ** :- ( با + را + ن ـــــ ) ( انګ ، پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د خاص قسم کپړې نه جوړ شوے اوږد کوټ چې د اوبو اثر پرې نۀ کېږي او د باران نه د بچ کېدو دپاره اغوستے شي .برساتي .

**کوټ**:- (کو + ټ )(انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) ته ، د رنګ وغيره يوه ته . په يو وار ورکړے شوے رنګ .يا چونه وغيره لکه : دوه کوټه چونه مې ورکړه .

**کوټ** :- ( کو + ټ )(اس ، جم ) يو قسم دات ( دهات ، فلز ) چې د مختلفو داتونو په يو ځاے کولو جوړولے شي .جست .

**ـــــ بنګار** :- ( ـــــ ب + ن + ګا + ر )( پ تر ، اس ، جم ) مخلوط دات ( فلز ، دهات ) مجازاً ګډون واله ادنٰی دات .

په پيرۍ کښې به اوس کوټ او بنګار څۀ کړم (رحمان)

د زړۀ دېلے دې پاک ساته مدام د شک له خيري

د کوټ بنګار اوبۀ له سرو سره پېوندونه کړې (حافظ)

**کوټانې**:- ( کو + ټا + ڼ + ې )(اس ، مع ) يو قسم خانه بدوش خلک ، چې رنګ ئې ډېر زيات تور وي .

**کوټخه** :- ( کو + ټ + خَ )(اس ، مو ، ج ـــ خې )(د „ کوټه ،، تصغير دے ) وړه کوټه ، کوټکنۍ .( عموماً د سپکاوي په طوروايه شي )

**کوټخه**:- ( کو + ټ + خَ )(اس ، مو ، ج ـــــ خې ) يو قسم اوږده ټوپۍ چې غوړونه په کښې پټ وي .

سلطنت د عــدالته سره زيب کا

نۀ نادان چې په سر واړوي کوټخه (انصاري)

**کوټخه** :- ( کو + ټ + خَ )(اس ، مو ، ج ـــــ خې ) کورے ، هغه جالي داره ټوپۍ چې د وبنو يا ميزرو نه جوړه وي .او د ښارو خولو ته اچولے شي .

**کوټرکے**:- (کو + ټ + ر + کے )(اس ، مذ ، ج ـــ کي )کُوچے ، د خر وړوکے بچے

**کوټرنډ**:- (کو + ټ + ر + ن + ډ )(صف ،مذ ،مو ـــ ه )(۱) په قلا ( قلعه ) کښې راګېر ، محصور(۲) په قلا ( قلعه ) کښې محفوظ ، محصور ، قلعه نشين .

**کوټک** :- ( کو + ټ + ک )(اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د زنې لاندې حصه .

**کوټک** :- ( کو + ټ + ک )(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه / ينه )کټمل ،مونګونړ ، منګڼ .

**کوټکار** :- ( کو + ټ + کا + ر )(اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) يو لوے سخت بوټے دے .چې واړۀ واړۀ ازغي ( اغزي ) لري .د اوښانو خوراک دے .

**کوټک** :- ( ک + و + ټ + ک + و + ټ ) (اس ، صوت ) د چرګې اواز .

**ـــــ کول** :- ټکو ستړے کول ، وژل

څو ډکې خونې دې چې مرګې لوټ کړې

څــو خــلقې ئې ســره کوټ کوټ کړې (خوشحال)

**کوټکو ټانې** :- ( کو + ټ + کو + ټا + ڼ + ې )(اس ، مو )د هلکانو يوه لوبه ده .

چې دوه ډلې وي .او د يوې ډلې په بلې باندې د سورلۍ نه شورو کېږي .

**کوټکے** :- ( کو + ټ + کے )(اس ، مذ ، ج ــــ کي )د „ کوټ ،، تصغير دے وړوکے کوټ ، وړه قلا ، قلاګۍ .

**کوټ ګارډ** :- ( کو + ټ + ګا + ر + ډ )( و ـــ کورټ ګارډ )

**کوټل**:- ( ک + و + ټ + ل )( مص ) خفه کول ، غمجن کول ، بدول ،

چې ئې زړۀ زما کواټه

هغه د يو خداے وراټه (دولت)

**کوټل**:- (کو + ټ + ل )( مص )(۱) قيمه کول ، ذره ذره کول (۲) حلالول ، ذبح کول

**کوټل** :- ( کو + ټ + ل ) ( مص )ټکول ، په ټکولو سره کلکول .

**کوټنۍ**:- ( کو + ټ + ڼ + ۍ )(اس ، مو ) وړوکے ټوپکے ، وړه شان ډبره ، ټوپکے ، دلۍ ، خرۍ .

**کوټنۍ** :- ( کو + ټ + ڼ + ۍ )(اس ، مو )(د „ کوټه ،، تصغير دے ) وړه شان کوټه .

**کوټنۍ** :- ( کو + ټ + ڼ + ۍ )( پ تر ، مو )(۱) د وړو جينکو يوه لوبه (۲) خانې خانې ، سورې سورې .

**کوټله** :- ( کو + ټ + لَ )(۱) د „ کوټ ،، لنډيز ( تصغير ) دے وړه قلا ، قلاګۍ (۲) د کلو ځايونو نومونو سره راځي .لکه : کوټله سلطان خان ، کوټله محسن خان .

**کوټلۍ** :- ( کو + ټ + ل + ۍ )(اس ، مو )کوټګۍ ، وړه کوټه ، زاويه .

**کوټلے**:- ( کو + ټ + لے ) (اس ، مف ، مذ ، ج ــــ لي ) (۱) قيمه شوے ، ذره ذره شوے (۲) ذبحه شوے ، حلال شوے .

چې کوټلي دي په تېغ ستا د چشمانو

ســر حــلقه دي د جــمــلــه ؤ شهيدانو (رحمان بابا)

**کوټلے** :- (کو + ټ + لے )(اس ،مف ،مذ ،ج ــــ لي )(۱) سخت سخت ټکولے شوے .په ټکولو سره کلک کړے ، ښۀ ډېر ټکولے .(۲) مضبوط ، کلک ، محکم

**ـــــ ځوان** :- ( ـــــ ( د ) ز + وا + ن )

**ـــــ سړے** :- ( ـــــ س + ړے )( پ تر ، اس ، مذ ) مضبوط ځوان يا سړے ، کلک او تندرست سړے ، تکړه سړے يا ځوان .

**کوټنه** :- ( کو + ټ + نَ )( حمص ) (۱) قيمه کونه (۲) حلالونه .

**کوټنه** :- ( کو + ټ + نَ )( حمص ) سخت سخت ټکونه ، په ټکولو د بوسو سخے ترې جوړونه ، ښۀ ډېر ټکونه .

**ځان ـــ** :- ( ـــــ کو + ټ + ن ) ځان ښۀ ډېر ټکونه ، په ځان باندې راکښېوتنه .

په مانۍ د يار له ياره

ځان کوټنه که اختيار (حميد)

**کوټوال** :- ( کو + ټ + وا + ل )(اس ، مذ ، ج ـــــ ان )(۱) د „ کوټ ،، ( قلا) مشر يا افسر .د قلا محافظ .(۲) د پوليس د تانې مشر ، د ښهر ( ښار) د پوليس لوے افسر .

خدايه څۀ دې د کوټوال په لاس کښې ورکړم

چې شپــه ورځ مې غــروي لــکــه تُــوری (رحمان بابا)

**کوټــوال** :- ( کــو + ټ + وا + ل )(اس ، مــع ) ( بــل ) د کــوټې ( کــوټې ) اوسېدونکے .

**کوټوالي** :- ( کو + ټ + وا + ل + ی )( هپ ، تر ، اس ، مو ) د کوټــــوال د اوسېدلو ځاے ، هغه ځاے چې چېرته د پوليس لوے افسر او د هغۀ ماتحته عمله اوسي .د پوليس سټېشن ، تانه ( اوس دا لفظ که کوز

استعمالېږي)

**کوټوال**:- (کو + ټ + وا + لي) (اس، مو) د ښهر ښار د پولس (پولیس) لوے دفتر. (اوس د دې په ځاے تانې او د پولس د لویو افسرانو دفترونه جوړ شوي دي).

**کوټور**:- (کو + ټ + و + ر) (پ تر، صف، مذ، مو ــــ ه) کوټې والا، د کوټې خاوند، کوټه لرونکے.

**کوټوونکے**:- (کو + ټ + وو + ن + کے) (اس، فا، مذ، ج ــــ کي) ټوپ کوونکے، ټوپ جوړونکے، توده جوړوونکے.

**کوټوونکے**:- (کو + ټ + وو + ن + کے) (اس، فا، مذ، ج ــــ کي) قیمه کوونکے، ذرې ذرې کوونکے، حلالوونکے، ذبح کوونکے.

**کوټوونکے**:- (کو + ټ + وو + ن + کے) (اس، فا، مذ، ج ــــ کي) ټکه وونکے.

**کوټه**:- (ک + و + ټَ) ډېرۍ، ټوپکے، خرۍ، دکۍ، انبار.

ــــ **کول**:- انبارول، ټوپ کول، ټوپکے جوړول، خرۍ جوړول.

ــــ **کېدل**:- انبارېدل، ټوپکے کېدل، ټوپ کېدل، خرۍ کېدل، دکۍ جوړېدل

پـه هـر چا کوټه غمونه خپل دي

څوک دي چې نن په غم د بل دي (خوشحال)

ــــ **کېدل**:- جمع کېدل، ټولېدل.

**کوټه**:- (کو + ټَ) (اس، مو، ج ــــ ټې) (۱) کمره (۲) د کمرې چت.

**پهــ خنل**:- د کمرې یا د عمارت د چت دپاسه ختل.

**کوټه**:- (کو + ټَ) (اس، مو، ج ــــ ټې) بیټک، د ناستې کمره.

**کوټه**:- (کو + ټَ) (هـ، صف) (۱) (د کره ضد) قلب، ناسره، ناکره. (۲) ناچل (سکه) هغه نقلي سکه چې په بازار کښې ئې څوک نۀ قبلوي. (۳) هغه سړے چې په روزګار او لېن دېن کښې بد دیانته وي. بې ایمانه.

ــــ **توب**:- (ــــ تو + ب) (و ــــ کوټه والے).

ــــ **څاروے**:- (ــــ (ت) سا + ر + وے) (پ تر، اس، مذ، ج ــــ وي) هغه څاروے چې په کار کښې سست وي. لټ څاروے.

ــــ **سکه**:- (ــــ س / سي + ک + کَ) (فپ تر، صف) هغه ناسره سکه (روپۍ، پونډ، اشرفۍ وغېره) چې خالصه نۀ وي. یا جعلي وي. او په بازار کښې ئې څوک نۀ قبلوي.

ــــ **کره کتل**:- (۱) ښۀ او بد معلومول، د ښۀ او بد ازمېښت کول. (۲) سکه ټنګول.

ــــ **ګرم**:- (ــــ ګ + ر + م) (پ تر، صف، مذ، مو ــــ ه) د کوټه او دګرم مرکب دے. هغه کس چې هم کوټه (درغل) او هم ګرم (بد عمله) وي.

کاهلي لویـه بلا ده، اخلاص بویه

کوټه ګرم مرئے خرڅېږي په نخاس (حسین)

ــــ **لال**:- کوټي لال

که ئې سل ځله څوک لعل لعل بولي

پـه ستائیلو بـه لعل نۀ شي کوټه لال (حمید)

ــــ **والے**:- (ــــ وا + لے) (اس، مذ) کوټه توب، کوټه "بودنه"، ناسره والے، ناکره والے، ناخالص والے (۲) بد دیانتي، بې ایماني.

**کوټه**:- (کو + ټَ) (صف) د سپو ادنیٰ قسم. په لارو کوڅو کښې پیدا شوے او لوے شوے سپے کوڅه ډب. (د اعلیٰ نسل یا د تازي سپي په مقابله کښې)

ــــ **سګ**:- کوټه سپے، هغه سپے چې اصیل نۀ وي.

کوټه سګ د زمانې هر ګوره ډېر شول

لـکه پـړانګ د زاوه ونیسه کـرخه (خوشحال)

**کوټه**:- (کو + ټَ) (اس، مع) کوئټه، د بلوچستان د صوبې دارالحکومت.

**کوټه**:- (کو + ټَ) (فعل) د "کوټل"، مصدر نه د امر (استمراري) صیغه. قیمه کول، حلالوه.

**کوټه**:- (کو + ټَ) (اس، مع، مو) د صوابۍ ضلع کښې یو کلے دے. مشهور عالم بزرګ او مجاهد سید امیر صاحب دلته زېږېدلے وۀ. او زیارت ئې هم دلته دے.

**کوټه کریابه**:- (کو + ټَ + ک + ر + یا + بَ) (پ تر، صف) بدقسمته ښځه، بد نصیبه ښځه، بدبخته، په نصیب خواره.

ــــ **شي**:- (جمله) د ښېرې (بد دعا) په طور وایۀ شي. (عموماً ښځې یو بلې ته وائي) په قسمت خواره شي، په بده ورځ شي.

ــــ **کول**:- ورځ بدول، بدبخته کول، نصیب خوارول.

ــــ **کېدل**:- بدبخته کېدل، ورځ بدېدل، نصیب خوارېدل.

**ګوټهه**:- (کو + ټَ) و ــــ کونه د هندۍ لفظ دے. په پښتو کښې د هندۍ په شان "هائیه"، توري نشته ځکه په پښتو کښې "کوټه"، وئیلے شي. خو فشار کښې ئې فرق دے).

**کـوټي**:- (کُ / کـو + ټي) (تورے) د اندازې تورے دے. د لږ، پوټې معنیٰ ورکوي. ځان له نۀ استعمالېږي نورو الفاظو سره د تاکید په طور راځي. لکه: لږ کوټي.

**لږ**ــــ:- (ل + ګ ــــ) (پ تر، د مقدار تورے) (۱) لږ شان، پوټے شان (مقدار) لکه:- لږ کوټي، لـه هم راکړه (۲) لږ شان ساعت، پوټے شان وخت

لکه: لږ کوټي راشه. (د کثرت استعمال له کبله "لکوټي"، هم وائي).

**کوټي**:- (کو + ټي) (اس، مذ) د ګډ سر، ککره.

ــــ **والا**:- (ــــ وا + ل) (اس، مذ) کله پز، کله فروش.

**کوټي**:- (کو + ټي) (اس، مذ، ج) (۱) د "کوټه"، جمع ده. په هېڅ رنګ به پښه سرخلاص نۀ کړې له مرګه

کـــه کـــوټي تـرې ځـان چاپېره کړې آهنې (خوشحال)

(۲) د "کوټه"، اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل.

**د**ــــ **د سر منډه**:- (د ــــ د + س + ر + م + ن + ډ) (پ تر، اس، مو) لنډه منډه، مختصر کار.

**د**ــــ **زغاښت**:- د کوټي د سر منډه، لنډ مزل.

په دروغ وعده کول د کوټي زغاښت

د کـوټي په سر به څو زغلې سالوس (حمید)

**کوټۍ**:- (کو + ټ + ۍ) (اس، مو) بنګله، لویه ماڼۍ (چې ورسره چمنونه هم وي)

**کـوټۍ**:- (کـو + ټ + ۍ) (هـ، اس، مـو، ج ــــ انې) د تجارت ځاے یا عمارت، د سوداګرۍ مرکز. لکه: د تاجرانو ډېرې کوټیانې کار کوي.

**کوټیے**:- (ک + و + ټیے) (اس، مذ، ج ــــ ټي) (۱) د لرګو نه جوړ شوے کندو یا انبار خانه. (۲) د لرګو نه جوړه شوې وړه کوټه.

**کوټیے**:- (کو + ټیے) (اس، مذ، ج ــــ ټي) کوپړۍ، د سر کاسه، ککرۍ، کله

اوس به ځي له مانه عشق څرنګ ناصحه

چې له نـوکه تر کوټیه موئې په موئې لاړ (حمید)

**کوټیے**:- (کو + ټیے) (اس، مذ، ج ــــ کي) کوچے، وړوکے خر، د خر وړوکے بچې، خرګے، کوځے.

**کوتړ** :- ( کو + تړ )( اس ، صوت ) د خر د شړلو اواز .

**کوتړ کوتړ** :- ( کو + تړ + کو + تړ ) ( اس صوت ) د خر د شړلو اواز .

**کوټیالی** :- ( ک /کو + ټ + یا + ل + ی )( هـ ، اس ، مو ) د زرګرانو پیاله چې په کښې زر ویلي کوي .بوته ( هـ : کټهالي ) .

**کوثر** :- ( کو + ث + ر )( ع ، اس ، مذ )(۱) د جنت د یوې ولې نوم چې اوبـهٔ ئې ډېرې زیاتې خوږې او خوندناکې دي .(۲) یو حوض چې د دغې ولې اوبـهٔ په کښې جمع کېږي .وائي چې په اخرت کښې به دغه حوض حضور پاک صلی الله علیه وسلم لـه ورکړے شي او هغوي بـه ئې اوبـهٔ جنتیانو لـه ورکوي .ځکه ورته ساقي کوثر وائي .

**ساقي ـــ** :- ( سا + قي + ئے ـــ ) د کوثر د حوض د اوبو ساقي ، مراد تـرې رسول پاک صلی الله علیه وسلم دے .

**کوجتي** :- ( کو + ج + تي )( صف مذ ) هغه چې روجه ( روژه ) ئې نهٔ وي نیولې . بې روجې ( بې روژې ) بې روزې .

**کوجرکي** :- ( کو + ج + ر + کي )( اس ، جم ) د مله د تبر مهرے .

**کوجکۍ** :- ( کو + ج + ک + ی )( اس ، مو ) هغه دوه لنډ شان لرګي ,, کوم چې د اوبنِ د یالان ،، دواړو طرفونو ته نېغ ودرولي شوي وي .

**کوجن** :- ( کو + ج + ن ) ( و ـــ کورجن ) .

**کوجه** :- ( کو + ج )( اس ، مو ، ج ـــ جې ) د روجې ( روژې ) ضد بې روجې ( بې روژې ) حالت .

**ـــ کول** :- روجه ( روژه ) ماتول ،روژه نهٔ ساتل .

**کوځړۍ** :- ( کو + ( د ) ز + ړ + ی )( اس جم ) یو قسم بوټے دے چې اکثره د غنمو په فصل کښې پیدا کېږي .

**کوچ** :- ( کو + چ ) یا ( ک + وو + چ )( انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونـه )(۱) د ناستي ( یا د ملاستي ) هغـه تکیـه دار څیـز چې سپرنګونه پـه کښې لګېدلي وي .صوفه . (۲) بګۍ ، یوقسم څلور پائیز ګاډے چې غټ خلک به په کښې د هوا خورۍ دپاره تلل .

**ـــ وان** :- ( ـــ وا + ن )( انګ ،تراس ،مذ ،ج ـــ ان ،مو ـــ ه ) د کوچ قسمه بګۍ چلوونکے ، ټانګه چلوونکے ، ټانګې وال .

**کوچ** :- ( کو+ چ )( صف ، مذ ، مو ـــ چه ) تش ، خالي ، چې مېنځ ئې خالي وي

**کوچ** :- ( کُ / کو + چ ) ( اس ، جم ) مسکه ، کُچ .

**ـــ اېستل، اباسل، وېستل** :- څهٔ نتیجه وېستل ، څهٔ فائده منده نتیجه اېستل .لکه : د دې خبرې نه څهٔ کوچ وباسئ .

**ـــ پورې کول** :-

**ـــ لګول** :- د مطلب اېستلو دپاره د چا ( بې ځایه ) تعریف کول ، کنه غوړول

( چاله ) خوشامنده کول .

**کوچ** :- ( کو + چ ) ( ت ، اس ، مذ )روانېدنه ، د یو ځاے نه بل ځاے ته سفر ، روانګي ، رحلت ، یُون ، لېږدنه ، لېنه .

**ـــ په کوچ تلل** :- پړاو په پړاو مزل کول .

لاړم له پنډۍ شپه تر مېنځ د ککړ تال

لاړم تر لاهوره کوچ په کوچ په ارتحال ( خوشحال )

**ـــ کول** :- (۱) روانېدل ، د یو ځاے نه کډې پورته کول او بل ځاے ته روانېدل ، په سفر تلل ، په سفر روانېدل ، لېږدل ،لېنل ، کډه کول .(۲) مجازاً د دې جهان نه بل جهان ته سفر کول ، مړ کېدل .

چې روح کوچ کړي له ابدا ته

پـه ښي لوریا په کیڼ جانه ( حافظ )

**کوچټ** :- ( کو + چ+ ټ )( اس ، مذ ) وړوکے هلک .

**ـــ توب** :- ( ـــ تو + ب )( پ تر ، اس ، مذ ) وړوکوالے ، هلکوانه ، د هلک والي عمر .

**ـــ والے** :- ( ـــ وا + لے ) ( پ تر ، اس ، مذ ) هلکوانه .

**کوچخول** :- ( کو + چ+ خو + ل ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) (۱) د شپې د اغوستلو ( جامه )(۲) بړستن ، تلتک .

**کوچخول** :- ( کو + چ+ خو + ل ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د باران ټوپۍ یا کلاه

**کوچک** :- ( کو + چ+ ک )( ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) وړوکے ، کـچ ، ورکوټے ، کمکے ، ووړکچنوټے .

**کوچکارل** :- ( کو + چ+ کا + ر + ل ) ( مص ) سپے خپل ځان تـه بلل ، سپي تـه توتو یا د کوچ ، کوچ اواز کول ، چې نژدې راشي .

**کوچکارنه** :- ( کو + چ+ کا + ر + ن )( حمص ) سپے ځان ته بلنه ، سپي ته د تو تو یا د کوچ ، کوچ اوازونه کونه ، چې نژدې راشي .

**کوچکارونکے** :- ( کو + چ+ کا + رو + ن + کے )( اس ، فا ، مذ ، ج ـــ کي ) سپے ځان ته بلونکے .

**کوچ کوچ** :- ( کو + چ+ کو + چ )( اس صوت ) د سپي ځان تـه د بللو اواز ، تو تو .

**کوچکین** :- ( کو + چ+ کي + ن ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) مـړدکے ، د کـاڼي مړدکے ، د کاڼي بلورے .

**کوچلاغ** :- ( ک + چ+ لا+ غ ) ( اس ، ظر ) هغه ځاے چېرتـه چې د شپې ګډې بزې بندولے شي .

**کوچلانه** :- ( ک + چ+ لا+ ن ) ( اس ، مو ، ج ـــ نې ) هغه مشک چې کوچ ( کچ ) په کښې جمع کولے شي .د کچو د جمع کولو مشک یا ګوډے .

**کوچلنه** :- ( ک + چ+ ل + نَ )

**کوچلېه** :- ( ک + چ+ ل + ن + ه ) ( اس ، مو ، ج ـــ رې / نې ) هغه مشک چې په کښې کوچ ( کچ ) جمع کوي .کوچلانه .

**کوچمال** :- ( کو / کو + چ+ ما + ل ) ( اس ظر ) د کوچ وخت ، پـه سفر د روانېدلو وخت .( د کاروان وغېره ) د روانېدلو وخت

د کوچمال نغارې اورې په غوږونو

تکل نهٔ کوې د تلو غره غافله ( حافظ )

**کوچنډ** :- ( کو + چ+ ن + ډ ) ( اس ، مذ ، مو ـــ ه ) د ځناور بچے ، کوترے د هر ځنګلي ځناور ( لکه ګیدړ ، لېوهٔ وغېره ) بچے . حقـارةً د بنـي ادم بچي ته هم وائي .لکه : کونډه چې لـوے لـذت ئې اخستے وي ، کوچنډ ورځنې د بل نه پیدا دي . ( دستارنامه )

**کوچنډے** :- ( کو + چ+ ن + ډ ے ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ډي )(۱) د خر بچے ، وړوکے کوچے (۲) د سپي بچے ، کوترے (۳) ( د کنځلو پـه طور ) حرام زاده ، حرامي .

**کوچنۍ** :- ( کو + چ+ ن + ی ) د ,, کوچنے ،، تانیث دے .

**ـــ خبره** :- ( ـــ خ + ب + ر ) ( پ تـر ، اس ، مـو ) وړه خبـره ، معمـولي شان خبره .لکه : په کوچنۍ خبره خفه کېدل .

**ـــ میاشت** :- ( ـــ م + یا + ش + ت ) ( پ تر ، اس ، مو ) د شوال میاشت ، د وړوکي اختر میاشت .

**سترګې ـــ کول** :- سترګې چوچۍ کول ، سترګې داسې پټول چې لږ لږ په کښې ښکاري .

**کوچنے** :- ( کو + چ+ نے )( اس صف ، مذ ، ج ـــ نې / ان ) وړوکے ، ورکوټے ، هلک ، کچ .

**ـــ اختر** :- ( ـــ ا + خ + ت + ر ) ( پ تر ، اس ، مذ ) وړوکے اختر ، عیدالفطر

**ـــــکول** :- وړوکی کول ، ورکوټی کول .

**ـــــهلک** :- (ـــــهـ + ل + ک)(پ تر ، اس ، ج ـــ کوچني هلکان) وړوکی هلک .

**کوچو** :- (کُ + چو) د ,, کوچ ،، (جمع) اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل . لکه : بن د کچو هم نه وي .

**پهـــسر غورځول** :- فضول خرچي کول .

مور ئې د کلي شوملې غواړي

لُور ئې په پاو کچو سر نهٔ غورځوينه (ټپه)

**کوچوان** :- (کو + چ + وا + ن) (انګ پ تر ، اس مذ ، ج ـــ ان) کوچ (بګی) ، چلوونکی ، ټانګه چلوونکی ، ټانګې واله .

**کوچواني** :- (کو + چ + وا + ني) (اس ، مو) د ټانګې ، بګی وغېره د چلولو کسب یا هنر .

**کوچوټی** :- (کو + چو + تی (صف ، اس ، مذ ، ج ـــ ټې) ډېر وړوکی ، ډېر ورکوټی .

**کوچومرغۍ** :- (کو + چو + م + ر + غ + ی) (اس ، مو) د یوې مشهورې زېړرنګې مرغۍ نوم زړانګه ، ژړانګه .

**کوچه** :- (کو + چَ)(اس ، مو ، ج ـــ چې) رېښه .

**کوچه** :- (کو + چَ) (اس ، مو) غنم یا بله کومه دالو واله غله چې ثابته پخولې شي . ګونګړي .

**کوچه** :- (کو + چَ)(ف ، اس ، مو ، ج ـــ چې) (۱) کفچه ، یو قسم مڅۍ (۲) چمچمار ، د مارانو یو قسم .

**کوچه** :- (کو + چَ)(اس ،مو)د خرونو د یو مرض نوم دے .

**کوچه** :- (کو + چَ)(اس ، مو)(و ـــ کوڅه)

**ـــــګرد** :- (ـــــګ + ر + د)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) په کوڅو کښې ګرځېدونکی ، اواره ګرد ، خوشې بېکاره سړے . کوڅه درب .

**کوچۍ** :- (کو + چ + ی)(اس ، مو)د نمدې نه جوړه هغه جامه چې شپانهٔ وغېره د نورو جامو د پاسه اوغوندي د نمدې (لمسي) وړوکی بالاپوش .

**کوچۍ**:- (کو + چ + ی)(اس ، مو) هغه رنګینه ټوکره چې دماشومانو په ګرېوان کښې ګنډلې شي . لاړګير .

**کوچۍ** :- (کو + چ + ی)(اس ، مو ، ج ـــــ ئ/انې) د ,, کوچے ،، تانیث دے

**کوچے** :- (کو + چے) (اس ، مذ ، ج ـــ چي /ان) کوچ کوونکی ، هغه وګړے چې په خاص خاص موسمونو کښې د یو ځاے نه بل ځاے ته کډې وړي . خانه بدوش ، پاونده .

**کوچے**:- (کو + چے)(اس ، مذ ، ج ـــــ چي) هغه غټه پله (اربه) کومه چې د پښې د پوندې دپاسه او د ګیټو شاته وي . (هـــ کونچ) .

**کوچے**:- (کو + چے)(اس ، مذ ، ج ـــــ چي) د خر بچے ، کوټے ، کوځے .

**کوچے**:- (کو + چے)(اس ، مذ ، ج ـــــ چي) ګونډے ، ګوتیے ، کچے ، سل ، موځی ، د هلکانو د لوبو غونډ څیز چې د پلن کاڼي یا د ټیکرې نه جوړ کړے شي .

**کوچیانے** :- (کو/کُو + چ + یا + نے)(صف ، مذ ، ج ـــ ني) د کوچیانو سره تعلق لرونکی ، کوچیانو ته منسوب .

**ـــــژوند (جوند)** :- (پ تر ، اس ، مذ) د کوچیانو یا د خانه بدوشو په شان ژوند (جوند) . د کوچیتوب ژوند (جوند)

**کوچېدل** :- (کو + چې + د + ل)(مص)کوچ کول ، په سفر روانېدل ، د کاروان وغېره د یو ځاے نه بل ځاے ته تلل ، لېږدل ، لښل ، کډه کول .

**کوچېدنه** :- (کو + چې + د + نَ) (حمص) روانېدنه ، په سفر تلنه ، د کاروان یا د خانه بدوشو خلکو ، د یو ځاے نه بل ځاے ته روانېدنه .

**کوچېنے** :- (کو + چې + نے) (و ـــ کوچنے) .

**کوخ** :- (ک + و + (ث) س) (اس ، جم) د خشاک لوے ټوپ یا انبار .

**کوځر** :- (ک + و + (ث) س + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (مروت) لوے وزر ، د مارغهٔ وزرې ، وزر ، پر .

**کوځر** :- (ک + و + (ت) س + ر) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د کتاب کاتبی ، جلد ، دوتنه ، د کتاب قائې .

**کوځره** :- (کو + (ت) س + رَ)(اس ، مو ، ج ـــــ رې)(۱) پېزار ، کوځړه (۲) خصوصاً هغه پېزار چې د زړو پېڼو د پوندو شاته برخه ماته کړے شي . سلیپر (۳) د لرګي نه جوړ شوے پېزار چې عموماً هندو ، هندوانو اچولې)

**کوځک** :- (کو + (ت) س + ک) (اس جم) هغه دانې چې په بدن راوخېژي (وخیجي) کځوک .

**کوځکے** :- (کو+(ت) س+ کے)(اس ، مذ ، ج ـــــ کي) کوچے ، د خر بچے ، کوټے .

**کوځو** :- (کو + (ت) سو) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د نمدې جوړ شوے بالا پوش ، چې لستوڼې نهٔ لري .

**کوځه** :- (ک + و + (ت) سَ) (اس ، مو ، ج ـــــ ځې) د نغرې (یاد باورچي خانې) په خوا کښې د خشاک وغېره دپاره ځاے .

**کوځه** :- (ک + و + (ت) سَ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ځې)کوښښ ، سعي .

**ـــــکول** :- کوښښ کول ، سعي کول ، جدوجهد کول .

**کوڅه** :- (کو + (ت) سَ)(اس ، مو ، ج ـــــ څې / ځۍ)د زلفو یو لړ ، کونځۍ ، (دا لفظ یواځې کم کوز استعمالېږي عموماً د جمعې په شکل کښې استعمالېږي .)

**کوڅه** :- (کو + (ت) سَ)(اس ، مو ، ج ـــــ څې)ګلۍ ، کوچه ،چوله ، د کورونو په مېنځ کښې لار .

**ـــــپه کوڅه** :- (ـــپ + کو + (ت) سَ)(پ تر ، تف) په هره کوڅه ، په هر ځاے (کښې) .

**ـــــدرب** :- (ـــــد + ر + ب) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) په کوڅو کښې خوشې ګرځېدونکی خوشے ، اواره (ګرد) .

**ـــــډب** :- (ـ ډ + ب) (پ تر ، صف ، مذ ، مو - ه)(۱) (و- کوڅه درب) (۲) د ادنٰی درجې خوشے سپے ، (د تازي وغېره په مقابله کښې )کوته سپے ، د ادنٰی نسل سپے (۳) مجازاً کمذات ، کمینه سړے ، رذیل .

**ـــــګرد** :- (ـــــګ + ر + د) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه)په کوڅو کښې ګرځېدونکی ، خوشے ګرځېدونکی ، اواره ګرد ، خوشکے .

**ـــــګردي** :- (ـــــګ + ر + دي)(ف پ تر ، اس ، مو) په کوڅو کښې ګرځېدنه خوشے ګرځېدنه ، اواره ګردي ، خوشک توب .

**ـــــګښت** :- (ـــــګ + خ / ش + ت) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) (و ـــــ کوڅه درب) .

**ـــــوال** :- (ـــــوا + ل) (پ تر ، اس ، مذ ، مو ـــــ ه) په یوه کوڅه کښې اوسېدونکی ، د یوې کوڅې .

**کوڅې** :- (کو + (ت) سې)(۱) د ,, کوڅه ،، جمع (۲) د ,,کوڅه ،، اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل .

**ـــــپناه کول** :- لرې اوسېدل ، ځان (د چا نه) لرې او غېب ساتل .

**کوڅۍ** :- (کو + (ت) سی)(اس ، مو ، ج) زلفې ، د زنانهٔ د وېښتو اودلې شوې لړونه ، کمڅۍ ، کونځۍ .

**ـــــــ کول** :- د زنانه ؤ د سر وېښتهٔ په یو لړ یا ګڼو لړونو کښېښې اودل ـ کونځي کول.

**کوخ** :-( کو + خ )(اس صوت) چغه ، تېز اواز ، بو (د ویرولو دپاره اواز ) ـ

**ــــــ وهل** :- ناڅاپه (د ویرولو دپاره ) تېز اواز وښکل ـ لکه : که ناخبره یو چا درباندې کوخ وهل نو ...

**کوخک** :-( کو + خ + ک )(اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) د انګورو خوشه ـ

**کوخک** :-( کو + خ + ک )(اس ، جم ) یو قسم واړهٔ واړهٔ سپین چینجي چې عموماً د ماشومانو په کُنه کښې پیدا کېږي ـ

**کوخۍ** :-( کو + خ + ۍ )(اس ، مو ) یو قسم حشره (چینجي مینجي ) ده ـ

**کود** :-( کُ / کو + د )(اس ، مذ ) سره (چې په پټو کښې اچولې شي ) ـ

**عضوي ــــ** :-( ع + ض + وي ــــ )(عپ ، تر ، اس ، مذ ) هغه سره چې د ځناورو د بدن یا د وینې وغېره نه جوړولې شي ـ

**کیمیاوي ــــ** :-( کي / کې + م + یا + وي ــــ ) (عف ، تر ، اس ، مذ ) هغه سره کومه چې په کیمیاوي طریقو جوړولې شي ـ عموماً ورته انګریزي سره وائي کیمیاوي سره ـ

**کودالۍ** :-( کو / کُ + دا + ل + ۍ ) (اس ، مذ ) د زمکې د کنستلو اله ، چې مخ ئې د تیشې په شان پلن وي ـ کدالۍ ـ

**کودالۍ** :-( کو / + دا + ل + ۍ )(اس ، مو ) هغه ټوکره یا ټوکرۍ چې په کښې ښاروو ته ګیاه یا ګډ وغېره کښېښودې شي ـ

**کودټوپه** :-( کو + د + ټو + پَ ) (اس ،مو ، ج ــــ پې ) هغه خرق عادت کار کوم چې د کافر د لاسه وشي ـ (ع ــ استدراج ) ـ

**کودر** :-( کو + د + ر ) (اس ، مو ، ج ــــ رې ) ټیکرې ، د مات خاورین لوښي ټکړه ، ټیکر ـ

د کوهاټ حاجي بهادر بېش بها دُر ؤ
د کودرو پـه مقام ئې بې قیمت ږدي (حافظ )

**کودرا** :-( کو + د + را )(اس ، مذ ، ج ــــ رې ) ټیکرې ، د مات شوي خاورین لوښي ټکړه ، کودرې ـ

**کودرکې** :-( کو + د + ر + کې )(اس ، مذ ، ج ــــ کي ) د „ کودرې ،، تصغیر ـ

**کودرې** :-(کو + د + رې )(اس ،مذ ، ج ــــ ي )ټیکرې ،د خاورین لوښي ټکړه ـ

یمه یوخ د عشق په کار لکه کودرې (خوشحال )

**کودړک** :-( کو + د + ړ + ک )(اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) د چرګ شاتیینګه ، ټیینګه ، ګډړک ساتیینګې ـ

**کودړې** :-( کو + د + ړې ) (و ــــ کودرې )

**کودک** :- (کو/ کُو + د + ک )(ف ، اس ، مذ ، ج ــــ ان ) وړوکې ،ماشوم، هلک

**کودکستان** :-(کو + د + ک + س + تا + ن )(ف ، ظر ) هغه ځای چېرته چې ماشومان ساتلې یا روزلې شي ـ ورکتول ـ(انګ : کنډر ګارټن ) د ماشومانو د پالنې او تربیت ځای ـ

**کودن** :-( کو+ د + ن ) (ف ، صف ، مذ ، مو ــــ ه )کم عقل ، احمق ، شوده ، نادان ـ

**ــــ والی** :-(ــــ وا + لی )(اس ، مذ ) کم عقلتوب ، احمق توب ، حماقت کند ذهنې ـ

**کودله** :-( کو + د + لَ ) (اس ، مو ، ج ــــ لې )(و ــــ کوډخه )

**کوده** :-( کو + دَ )(اس ) د غلې کوم قسم دې ـ

کوده منډوه مهې ، مسور ، ږدن غوښت
وي د هــــر طــعــام لــذت بسیار (دولت )

**کوده** :-( کو + دَ )(اس ، مو ، ج ــــ دې )موټې ، کڼې ، لاستې (۱) د غنمو یا د اوربشو رېبلې شوې یو موټې یا (وړه ) ګېډۍ ـ (۲) دومره قدر چې په غېږ کښې راځي ـ دسته ـ

**کوده** :-( کو + دَ )(اس ، مو ، ج ــــ دې ) للون ، پوچې (قندهار )

**کوده** :-( کو + دَ )(اس ، مو ، ج ــــ دې ) د کاریز وغېره ژۍ چې اوبهٔ ترې بهېږي یا توئېږي ـ

**کودې** :-( کو+ دي )(۱) د „ کودې ،، جمع (۲) د „ کودې ،، اضافي او مجروري وغېره (متغیر) شکل ـ

په بل ځای مې پېرزو نهٔ ئې د یار غمه
تهٔ زما د زړهٔ د مات کودي ریحان ئې (خوشحال )

**پهـــ کښې حلالول** :- په ټیکري کښې حلالول ، مجازاً چاته ډېر زیات نقصان ور رسول ـ په پڅه چاړهٔ حلالول ـ

**کودې** :-( کو + دې )(اس ، مذ ، ج ــــ دي ) ټیکرې ، د خاورین لوښي ماته ټوټه ، ټیکر ـ

**کودې** :-(کو + دې ) (اس ، مذ ، ج ــــ دي ) د نوسي (نمسي ) زوې ، کړوسې

**کودیک** :-( کو+ دي +ک )(اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) یو قسم خاورینه کټوۍ

**کوډ** :-(اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) د غوزانو د لوبې قته ـ

چې ورته ګرځي په اوډه ډوډه
باغــکه ورشه اخر تر کوډه (خوشحال )

**کوډ** :-( کو+ ډ ) (سابقه ) د „ کوډه ،، مختصر شکل دې د سابقې په طور استعمالېږي ـ

**ــــ ګر** :-(ــــ ګَ / ک + ر ) (فپ تر ، اس مذ ، ج ــــ ان ) کــــوډې کوونکې ، جادوګر ، سحر کوونکې ـ

**ــــ ګره** :-(ــــ ګ + رَ ) (پ تر ، اس ، مو ، ج ــــ رې ) د „ کوډ ګر ،، تانیث دې ـ

**کوډبېلې** :-( کو + ډ + بې + لې ) (اس ، مذ ، ج ــــ لي ) بلانګورې ، بیلونګورې ، کوډه بلې ـ

**کوډخل** :-( کو+ ډ + خ + ل ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) کوډخه ، څپر ، ډېر معمولي شان کور ـ

**کوډخه** :-( کو+ ډ + خَ )(اس ، مو ، ج ــــ خې ) وړوکې شان کور ، کوډله ، د معمولي حېثیت یا جوړښت کور ، کوډغاله ـ کوډې ـ

**کوډر** :-(کو+ ډ + ر )(اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) د بیل یو قسم ، چې زنځیر یا پړې وربورې تړلې وي ـ او په دوو کسانو پرې کار کولې شي ـ پاړه ، کره چاري ـ

**کوډر** :-(کو+ ډ + ر )(اس، مذ ، ج ــــ ونه ) زړه شلېدلې جامه ، ډوډه ، خوشورې

**کوډغاله** :-( کو+ ډ + غا + لَ ) (اس ، مو ، ج ــــ لې )(و ــــ کوډخه )

**کوډغالې** :-( کو+ ډ + غا + لې )(و ــــ کودغاله )

**کوډکه** :-( کو+ ډ + کَ ) (اس مو ، ج ــــ کې ) کوډخه ، څپر ، کوډله
هېڅ پکار نهٔ ده ویسا د پاڼ په سوري
لاتــر لاتــدې وي د څو لړګو کوډکه (رحمان بابا )

**کوډل** :-( کو+ ډ + ل ) (۱) (و ــــ کوډخه ) (۲) د مارغانو د اوسېدلو ځای ، کډله ، کوډله (۳) د ژمي / جمي دپاره وړوکې شان کور ، کاشانه ـ

**کوډلا** :-( کو+ ډ + لا ) (اس ، مو ) هغه پرده کومه چې یو څو کسانو چې یو ځای ناست وي ، د سر دپاسه لکه د چترۍ ونیسي ـ

**کوډلوبې** :-( کو+ ډ + لو + بې )(پ تر ، اس ، مذ ، ج ــــ بي ) شعبدې

کوونکې، مداري.

**کوړله** :-( کو+ ړ + لَ ) (اس ، مو ، ج ـــــ لې ) کچه وړوکې شان کور ، د وښو او د معمولي لرګو څخه جوړ شوې کور ، جونګړه ، کوډخه.

**کوړلې** :-( کو+ ړ + ل + ی ) (اس ، مو ) د ,, کوړله ،، تصغير دے.

**کوړلې** :-( کو+ ړ + ل + ی )(اس ، مو ) خاورينه پياله ، د خاورو کنډول.

**کوډه** :-( کو+ ډ )(اس ، مو ، ج ـــــ ډې ) جادو ، سحر (دا لفظ عموماً د جمعې په شکل کښې استعمالېږي ) کوډه په اصل کښې د جادو سحر يو قسم دے .چې جادوګر يو ګوډاګے شان جوړ کړي او په کښې ستنې ورننه باسي .او چېرته ئې په خاص کور کښې ښخ کړي .او چې څۀ وخت د دغې کور د خلکو نه د جادو اثر لرې کوي .نو دا ګوډاګے راوباسي .او ستنې ترې نه وباسي .محض دوکه بازي ده )

**کوډه** :-( کو+ ډ ) (اس ، مو ، ج ـــــ ډې ) د غوزانو د لوبې قتـه .وړوکے شان ډوغل چې غوزان مړدکې يا پيسې په کښې (د جوارۍ په طور ) په کښې غورزولے شي.

چې ورته ګرځي ډوډه په ډوډه

باغـکه وريشي اخر تر کوډه (خوشحال )

**کوډۍ** :-( کو+ ډ + ی ) (و ـــــ کوډخه )

**کوډۍ** :-( کو+ ډ + ی )(هـ ، اس ، مو ) کونجکه ، کنجکه (هندکو ـ کوډي )

**کوډے**:-( کو+ ډ ے ) (۱) د ,, کـوډه ،، جمـع ده .(۲) د ,, کـوډه ،، اضـافي او مجروري وغېره (متغير ) شکل.

**کوډيکه** :-( کو+ ډي+ کَ ) (اس ، مو ، ج ـــــ کې ) د مشک ټکړه.

**کور** :-( ک + و + ر )(حرف ) عديل ، برابر ، مساوي ، سيال.

**کور** :-( ک + و + ر ) (اس جم ) انګور.

**کور** :-( ک + و + ر )(اس ، مذ ) نمجنه زمکه.

**کور** :-( کو + ر )(اس ، مذ ، ج- ونه )د ناوې داج ، دانځه ، (هـ- جهېز ).

**کور** :-( کو + ر )(اس ، مذ ) هغه لرګينه تختـه ، په کومـه چې د کور د خوب جامې وغېره پرې غوړوي.

**کور** :-( کو + ر )(اس ، مذ ) غالباً چې کوم پخوانے ټوکے دے .يو قسم ټوکر.

چې په سر ئې سور سالو

هــم د کـــور سره لمن (خوشحال )

**کور** :-( کو + ر )(صف ، مذ ، مو ـــــ ه ) بې دينه

په رنګ په شکل ښائسته ميور ئې

پــه زړۀ سنګينه نــاترسه کور ئې (خوشحال )

**کور** :-(کو + ر )(اس،مذ،ج ـونه) د يو کس يا د خاندان د اوسېدلو ځاے، خانه

ـــــ **ابادول** :- مجازاً وادۀ کول ، کورته ښځه راوستل.

ـــــ **ابادے**:-( ـــــ آ + با + دے )(پ تر ، صف ،مو ) کور آبادوونکے ، مجازاً ښځه ، مانرينه ، د کور مېرمنه.

ـــــ **اړے**:-( ـــــ ا + ړے ) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ړي ) په کور ناست ، خانه نشين ، کور ناستے.

ـــــ **او سر** :-( ـــــ او + سر )(پ تر ، تف ) په هر يو کور پسې ، د هر يو کور په سر ، عموماً دا لفظ ,کوروسر ،، وئيلے شي ).

ـــــ **بچړے** :-( ـــــ ب + چ + ړے ) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ړي ) خانه زاد ، د غلام يا د وينځې زوے.

ـــــ **په کور** :-( ـــــ پ + کو + ر ) (پ تر ، ظ ) په هر يو کور کښې.

لکه :- زۀ درپسې کور په کور وګرځېدم.

ـــــ **په کور کېدل** :- (۱) خپـل خپـل کـور تـه رسېدل .(۲) د لوټو (خوينده)

ودېدل.

ـــــ **جمات کېدل** :- د کـور نـه جومـات (مسـجد ) جوړېـدل .کـور د مـال اسباب وغېره نه خالي کېدل .(متل ) کور دې جمات شه نۀ هيرې ځې نۀ ديرې.

ـــــ **خوړېدل** :- کور تباه کېدل .په کور کښې ورانے راتلل.

ـــــ **دې خراب شه** :-

ـــــ **دې وران شه** :- په کور کښې دې خرابے يا ورانے پېدا شه .په کور کښې دې بې اتفاقي راشه .په کور کښې دې زوال راشه.

ـــــ **دې خور شه** :- کور دې وران شـه .د بد دعـا کلمـه ده .چې عمومـاً د تنبيه دپاره استعمالېږي.

که زۀ نۀ وينم ته خو دې ستر ګې رڼې کړه

کور دې خور شه تۀ چارپائي ئې که ادم ؟ (رحمان بابا )

ـــــ **دې ډاګ شه** :- د ښـېرې پـه طـور وئـيلے شـي .پـه کـور کښـې دې هېڅ پاتې مه شه

ـــــ **دې سپېرۀ شه** :- (جمله )(ښېره ده ) کور دې وران شه .کور دې تباه شه.

لکه :- د خلکو کور سپېرۀ شه .ناحقه ئې په ما پورې خبرې تړلې دي.

ـــــ **د لالا مُلا جومات کېدل** :- کور مسجد کېـدل ، پـه کـور کښـې هېڅ څيز نۀ پاتې کېدل .لکه :- غلو مې د لالامُلا جماعت کړ.

ـــــ **دې ودان شه** :- د دعـا پـه طور وئيلے شي .کور دې اباد شـه .پـه کـور کښې دې هر څۀ ډېر شه .اباد وسې.

ـــــ **ډاګ / ډاګه کول** :-

ـــــ **صفا کول** :- د کور نه هر څۀ وړل ، هېڅ نۀ (ور ) پرېښودل.

ـــــ **سمبالول** :-

ـــــ **سنبالول** :- د کور د کارونو په صحيح ډول سر ته رسول .کور صفا ستره ساتل .(د زنانهٔ په حقله وئيلے شي )

ـــــ **ښادے (بل )** :-(پ تر ، صف ، ج ـــــ دي ),, فلانے ،، خو ښۀ مفهوم لري .خانه اباد نېک بخت. لکه : هغه کور ښادي داسې خطا ويستم.

ـــــ **غـارے** :-( ـــــ غـا + رے )(پ تـر ، اس ، مـذ ، ج ـــــ ري )

کوراجے ، په کور اوسېدونکے ، مجازاً له جهانه نا خبره.

د خوبانو په تور برېښ پېښ شوے نۀ دے

نـاصـح ځـکـه د ځان لاهې کور غاري کا (حسېن )

ـــــ **کول** :- د ښځې خاوند تعلق جاري ساتل .د ښـځې ، خپـل خاوند سره ګذران کول.

ـــــ **ماند** :-( ـــــ ما + ن + د ) (پ تـر ، اس ، مـذ )کوربانـۀ ، کـورنۍ ، ريفر

ـــــ **مسجد کېدل** :- کور د مسجد (جومات ) په شان صفا کېـدل ، مجازاً کور ډاګه کېدل ، په کور کښې هېڅ نۀ پاتې کېدل.

ـــــ **ودانه ول** :- دعا کول لکه :- وروستو ئې کور ودانـه ووايـه او رخصت ئې يو له بله واخست.

ـــــ **ودانے** :-( ـــــ و + دا + نے )

ـــــ **ودانه** :-( ـــــ و + دا + ن )(و ـــــ کور ابادے )

ـــــ **ورانول، د چا** :- کور خرابـول ، د چا پـه کـور کښـې ورانے يـا بې اتفاقي راوستل .د چا کور تباه کول.

ـــــ **ورانېدل** :- کـور خرابېـدل ، پـه کـور کښـې بې اتفـاقي راتلـل ، پـه کـور کښې زوال او تباهي راتلل.

ـــــ **وهل، د چا** :-(۱) د چا کور لوټل (۲) د چا په کور کښې دعوت خوړل.

**پهـــناسته** :- (پـــنا + س + ت) (پ تر ، تف) د ناستي په حالت کښې مجازاً بېکاري ، کار نۀ کونه.بې روزګاري.

**کوربا** :- (کو + ر + با)(اسم ، مذ) د کور مالک ، کوربه، د مېلمه ضد مېزبان.

**کوربل** :- (کو + ر + بل)(اسم ، مذ) فریاد، واوېلا.

**کوربله** :- (کو + ر + ب + لَ)(اس ، مو ، جـــلې) ماتم ، نوحه ، ژړا (جړا) ، شور و غوغا ، چغې ، نارې ، فریاد.

**کوربنه** :- (کو + ر+ب +نَ)(اس ، مو ، جــــنې)د کور مالکه ، د کور خاونده.

**کوربڼ** :- (کو + ر + ب + ڼ)(اس ، مذ) د انګورو بڼ.

**کوربه** :- (کو + ر + ب)(اس ، مذ ، جـــبانۀ) د مېلمه ضد .د کور مالک ، د کور خاوند.

**کوربیز** :- (کو + ر + ب + ي + ز)(اس ، مذ) برېوکی ، برېوکی پیدا کونه

**کورپچه** :- (کو + ر + پ + چَ)(اس ، مو ، جــــې) لړ پلن توشک.

**کورپه** :- (کو + ر + پَ)(اس ، مو ، جـــــې) رشقه یا شفتل (شوتل) چې د ربېلو پس دوباره زرغونېږي.

**کورت** :- (کو + ر + ت)(اس ، جمع ، مذ) قرت ، کرت ، وچ شوي ماستۀ.

**کورتک** :- (کو + ر + ت + ک)(اس ، مذ ، واحد) د اوړو نرمه حلوا ، لېتی.

**کورته** :- (کو + ر + تَ) لاندې ، ښکته ، کُرته.

**کورټ** :- (کو + ر+ ټ)(اس ، صفت ، مذ) لړ شان ، لړ غوندې ، یو پوتے ، بېخي ، هېڅ ، لۀ سره.

**کورټ** :- (کو + ر + ټ) (انګ ، مذ) عدالت چې فېصلې په کښې کېږي.

**کورټ کانړے** :- (کو + ر + ټ+ ک + ا + ڼے) (اس ، مذ ، واحد ، جې ـــــنې) توت کانړے ، کرت کانړے.

**کورج** :- (کو + ر + ج) (اس ، واحد ، مذ) زوړباز ، کورچې.

**کورجي** :- (کو + ر + چ + ي) (اس ، واحد ، مذ) زوړ باز ، کورج.

**کورخې** :- (کو + ر + خ + ې)(اس ، مو ، ج) د لوبیا نه لږې غټې دانې لرونکې د دالو یو قسم ، واحد کرخه ، نباتاتي نوم.

**کورداري** :- (کو + ر + د + ا + ر + ي)(اس ، واحد ، مو) د خاوند او ښځې خپلو کښې کوروالے کونه.د کور کارونه ، خانه داري.

**کوردره** :- (کو + ر + د + ر + ه)(اس ، واحد ، مو ، جـــې) د فصل په مېنځ کښې نرۍ لاره.د پټي په مېنځ کښې نرۍ لار.

**کوردید** :- (کو + ر + د + ي + د) (اس ، صفت ، حد ، مو) ړوند ، هغه چې نظر ئې نۀ لګي.

**کورړا** :- (کو + ر + ړ + ا) (اسم ، صوت) د چیندخې اواز.

**کورشالۍ** :- (کو + ر + ش + ا + لۍ)(اس ، مو) خوږه غوښه ، د غوا ، مېښې یا ګډې بزې د شا هغه برخه چې د لکۍ او لم نه لږ شان پاس خوا ته وي. د دغه ځاے غوښه ډېره خوږه / ترسکونه وي.

**کورشکے** :- (کو + ر + ش + کے)(اس ، واحد ،مذ)د ماشومانو یوه لوبه.

**کورغارے** :- (کو + ر + غ+ ا + ر + ے)(اس ، واحد ، مذ ، جـــې) د غار اوسېدونکے ، کور غاړے.

**کورغاړے** :- (کو + ر + غ+ ا + ړ + ے) (وـــــ کور غارے)

**کورغالے** :- (کو + ر + غ+ ا + ل + ے) (اسم ، واحد ، مذ ، جــــلې) د کر د زمکې وړه شان ټوټه.

**کورغندل** :- (کو + ر + غ + ن + د + ل) (اس ، واحد ، مذ) د ازغو ډک یو زهریله بوټے چې د دارو په توګه هم استعمالولے شي.

**کورغوچو** :- (کو + ر + غ + و + چ + و) (اسم) د هلکانو یوه لوبه ، کورغوچونے

**کورغوچونے** :- (کو +ر+غ +و +چ+ و+ ن+ ے)(اس ، واحد ، مذ) (وـــ کورغوچو).

**کورغول** :- (کو + ر + غ + و + ل) (مصدر)انحصار کول ، اړه لرل.

**کورغون** :- (کو + ر + غ + و + ن) (حاصل مصدر) (وـــ کورغول)

**کورغے** :- (کو + ر + غ + ے)(اسم ، صف ، جـــــغي) بې غوږو ګډه.

**کورغېدل** :- (کو + ر + غ + ې + د + ل) (مصدر)انحصار کېدل ، اړه لرل.

**کورغېدن** :- (کو + ر + غ + ې + د + ن) (حاصل مصدر)(وـــــ کورغېدل).

**کورک** :- (کو + ر + ک)(صف ، مذ ، موــــــه) هغه حبوب (غله ، دانې) چې مېنځ ئې خالي او پوچ وي.پوچ ، ډډ.

**کورک** :- (کو + ر + ک)(اس ، مذ) وړوکے انار.

**کورک**:- (کو +ر+ک)(اس، مذ،جـــونه) د اوړو د کښېښودو ځاے، لوے کندو

**کورکشه** :- (کو + ر + ک + شَ) یا :- (کو + ر + ک + ش)(اس ، مو ، جـــــشې) د چرګو اولنۍ اګۍ ، د کوړت اګۍ.

**کورکمان** :- (کو + ر + ک + ما + ن)

**کورکمن** :- (کو + ر + ک + م + ن) (اس ، جم) مشهوره زیړ رنګې جړه ، چې په مسالو کښې پکارولے شي.(ف : زردچوبه ، هـ : هلدي ، هردل).

**کورکوډۍ** :- (کو + ر + کو + ډ + ئ)(وـــ کور کوډے)

**کورکوډے** :- (کو + ر + کو + ډ ے)(اس ، مذ ، جـــــډي) یو قسم شین رنګې او ښکلې مرغی.

**کورکوډے**:- (کو + ر + کو + ډ ے)(اس ، مذ ، جـــــډي) وړوکے شان کور ، کچه کور ، کورنده ، کونډغالے.

**کورکور** :- (کو + ر + کو + ر)(اس ، صوت) د چیندخې اواز ، چینګوښے اواز

**کورکور** :-(کُو + ر + کُو + ر)(اس ، صوت) د اس د بچي یا د کوچي د بللو اواز.

**کورکور** :- (کو + ر + کو + ر)(اس صوت) د مرږ اواز.

**ـــــ کول**:- کوړ کوړ کول، شکایت کول، لکه: تا به همېش کورکور کول چې

**کورکورانه** :- (کو + ر + کو + را + ن) (ف تر ، صف)کور په کور ، کور د کوره.هر یو کور سره متعلق.

**کورکورکـــه** :- (کـــو + ر + کـــو + ر + ک)(اس ، مـــو ، جـــــــکـــې) کوړکوړکی، ګوګوشتکه ،یو قسم فاخته.

**کورکورۍ** :- (کو + ر + کو + ر + ۍ)(صف ، اس ، مو) هغه زمکه چې اوبۀ نۀ راکاږي.او رنګ ئې زیړبخن سپین وي.

**کورکورۍ** :-(کو + ر + کو + ر + ۍ)(اس ، مو) د یوې مرغۍ نوم دے.خره خاړه

**کورکورے** :- (کو + ر + کو + ر + ے)(صف ، مذ ، جـــــي) هغه چې په مخ ئې د دانو نخښې وي.کوجن.

**کورکورے** :- (کـــو + ر + کـــو + ر + ے)(اس ، مـذ) د خښـتې ، د ټیکرکـو ، کودرو مېده کړې چوره.چې مسګران پرې لوښې مږي او صفا کوي.

**کورکورے** :-(کو + ر + کو + ر + ے)(اس ، مذ) د هلکانو د یوې لوبې نوم دے.چې په لږ لږ فاصله کښې قتے وکښي.هر یو لوبغاړے ځان ته یوه قته مقرره کړي چې خپل کور ئې بولي.او بیا مرډکي وغېره دغې خپل کور ته رسوي.خانې خانې.

**کورکورے** :-(کو + ر + کو + ر + ے)(اس ، صوت) د کور ، کور اواز ، کړ ، کړ ، د چیلم د ښنلو اواز.

**کورکونۍ** :-(کو + ر + کو + ڼ + ۍ)(اس ، جم) یو شین بوټی چې یو فټ قدرې لوړېږي.پخولے او خوړے شي.

**کورکونے** :-(کو + ر + کو + ڼ + ے)(اس ، مذ) د کاسني په شان یو بوټے دے چې د کوخک قسم چینجو د وژلو(وجلو) دپاره اماله کوي. (خوراک ئې زهر دي.)

**کورکے** :-( کو + ر + کے)(اس ، مذ ، ج ــــ کي) کوچے ، د خر بچے ، کوټے

**کورکے** :-( کو + ر + کے)(اس ، مذ ، ج ــــ کي) (د ,, کور ،، تصغیر دے) وړوکے کور ، وړوکے شان کور ، کورګوټے.

**کورکے** :-(کو + ر + کے)(اس ، مذ ، ج ــــ کي)(۱) کوهے چې کم جور (ژور) وي (۲) د کاریز هغه کم ژور (جور) او وړوکے کوهے کوم چې په فصل کښې سازولے شي.

**کورکیانۍ** :-( کو + ر + ک + یا + ن + ۍ)(اس ، مو) د وړو جینکو لوبه.چې ګوډۍ ګانو او د خاورو ختو کورکو سره کوي.او د ژوند (جوند) طور طریقې په کښې ښکاره کوي.

**کورکډے** :-( کو + ر + ک + ډ + ے)(اس ، مذ ، ج ــــ ډي)کورډاګے ، خانه خراب ، کور ودانے کور چوړے.

ــــ **کول** :-خانه چا له خرابول ، کور ډاګے کول ، تباه کول ، بربادول.

ــــ **کېدل** :-کور ډاګے کېدل ، کور خوړېدل ، خانه خرابېدل ، تباه کېدل ، بربادېدل.

**کورګوټ** :-( کو + ر + ګ + و + ټ)(صف ، مذ ، مو ــــ ه)کوږ او پیچیده.

**کورګے** :-( کو + ر + ګے)(اس ، مذ ، ج ــــ ګي) (بل) وړوکے کور ، (د کور تصغیر) ، کورکے.

**کورلۍ** :-(کو + ر + ل + ۍ)(اس ، مو) کولۍ ، د لوبو دانه چې سر ئې مات وي یا نیمه شوې وي.

**کورلے** :-( کو + ر + لے)(اس ، مذ ، ج ــــ لي)(۱) سویه ، خرګوش (۲) لنډے ، (دُم بریده).

**کورم** :-( کو + ر + م)(اس ، مع)(۱) کورمه ، د کورم ایجنسۍ ، د کورمې علاقې ، کرم (۲) د کرم سیند.

**کورمار** :-( کو + ر + ما + ر)(اس ، مذ)(۱) د مارانو یو قسم ، لنډۍ (۲) لټکه

**کورمانه** :-( کو + ر + ما + ن)(اس ، مو) د کور د خرځ او د سنبالښت وغېره انتظام چې د کور د مېرمن په ذمه وي.

**کورمښت** :-( کو + ر + م + خ / ش + ت)(اس ، مذ)(۱) سترګې مښل (۲) له دړده پیچ و تاب خوړل.

**کورمک** :-(کو + ر + م + ک)(صف ، مذ ، مو ــــ ه) (۱) مانده ، ډنګر ، کمزورے (۲) هغه چې د کمزورۍ له کبله ډېر بې دمه شوې وي . (۳) ناتوان

**کورمنګ** :-( کو + ر + م + ن + ګ)(اس ، مذ) یو ځنګلي مرغۍ ، چې د چرګ په شان وي.تدرو.

**کورمنګ** :-( کو + ر + م + ن + ګ)(اس ، مذ ، ج ــــ ان) یو مرغۍ ده . کرمنګ ، تنځرے.

**کورموش** :-( کو + ر + مو + ش) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) یو قسم غټ منږک دے چې سترګې ئې پټې وي او نظر ئې نۀ لګي .(ار : چھچوندر)

**کورنځۍ** :-( کو + ر + ن + (د) ز + ۍ) (اس ، مو) (۱) کمزورتیا ، ضعف ، ناتواني.د مرض په وجه کمزوري.

**کورنده** :-( کو + ر + ن + دَ)(اس ، مو ، ج ــــ دې) وړوکے شان کور ، کونډ غالے.

**کورنډه** :-( کو + ر + ن + ډَ)(اس ، مو ، ج ــــ ډې) هغه جرې وغېره کومې چې د شوتل (شفتل) یا د رشقې د ربېلو نه وروستو پاتې شي.

**کورنډۍ** :-( کو + ر + ن + ډ + ۍ) (اس ، مو) هغه جولۍ یا توبره شان چې په کښې د دهقانۍ د یوې کولو الات پراتۀ وي.

**کورنش** :-( کو + ر + ن + ش) (ت ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) یو قسم سلام چې په کښې سلام کوونکے ډېر زیات ټیټ شي.

**کورنګے** :-( کو + ر + ن + ګے)(اس ، مذ ، ج ــــ ګي)د اس بچے ، بهاڼ

**کورنګے** :-(کو + ر + ن + ګے)(اس ، مذ ، ج ــــ ګي)کوچے ، کوټے ، د خر بچے.

**کورنۍ** :-( کو + ر + ن + ۍ)د ,, کورنے ،، تانیث دے.

**کورنۍ** :-( کو + ر + ن + ۍ) (اس ، مو) خاندان ، ټبر ، د خاندان افراد.

**کورنے** :-( کو + ر + ن + ے)(اس ، مذ ، ج ــــ ني)(۱) د کور سره متعلق ، کور ته منسوب ، (۲) په کور کښې لوے شوے یا ساتلے شوے یا جوړ شوے.لکه :- کورنے ښاروے.

**کورو** :-( کو + رو) د ,, کور ،، یو قسم جمع ده.کورونه.

**کورواکے** :-( کو + ر+ وا + کے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ــــ کي) د کورواک لرونکے ، د کور اختیار مند.د کور څښتن ، د کور خاوند یا مالک.

**کوروالے** :-( کو + ر + وا + لے)(اس ، مذ ، ج ــــ لي) د ښځې خاوند یو ځاے کېدنه ، مجامعت.

**کورودانه** :-( کو + ر+ و + دا + ن)(پ تر ، مو) کور اباد وونکے ، مجازاً ښځه ، ماندینه.

**کورودانۍ** :-(کو + ر+ و +دا + ن+ ۍ) (پ تر ، اس ، ج)(بل)احسان ، نېکي ، شکریه ، مننه.

**کورودانے** :-( کو + ر+ و + دا + نے)(اس ، مو)کور ابادوونکے ، کور ودانوونکے.

**کورودانے** :-( کو + ر+ و + دا + نے)(پ تر ، اس ، مو) خانه ابادي ، تشکر ، مننه (فشار په ,,نے ،، باندې دے).

**کورودانے** :-(کو + ر+ و + دا + نے)(اس ، مذ ، ج ــــ ني) خانه خراب ، کور ډاګے ، کور خورے.

**کوروکورو** :-(کو + رو + کو + رو)(اس ، صوت) د اس د بچې یاد کوچي وغېره ځان ته د بللو اواز.

**کورولي** :-(کو + ر+ و + لي)(پ تر ، اس ، مو)(۱) په یو کور کښې اوسېدنه ، هم خانګي ، کورني تعلقات (۲) (و ــــ کور والے).

**کورونو** :-(کو + رو + نو) د ,, کورونه ،، اضافي او مجروري وغېره متغیر شکل.

د ــــ **شمېر** :-(د ــــ ش + مې + ر)(پ تر ، اس ، مذ) خانه شماري ، د یو کلي یا د ښهر وغېره کورونه شمېرل.

**کوره** :-( کو + ر)(هـ ، صف)(۱) هغه خاورین لوښے چې استعمال شوے نۀ وي.نوے لوښے.(۲) هغه ټوکے چې لاوینځلے شوے نۀ وي.او په خپل اصل رنګ وي.چې عموماً زیات سپین او صفا نۀ وي.

تۀ پرې پورې د کرم سنګ پارس کړ
که پرې سپین شي د خواجه محمد کوره (خواجه محمد)

(۳) هغه ساده کاغذ چې لا پرې څۀ لیکلے شوي نۀ وي.

هلک لکه سپین کوره کاغذ دے هر چې
پرې راکاږې هغه حرف پرې یووزي (دستار نامه)

**کوره** :- ( کو + رَ )(صف) باطل شوے ، ناپکاره ، ضائع ، ناڅیزه ، بابیز۔
**ـــــکول** :- بابیزول ، ضائع کول ، باطل کول ، ناپکاره یا ناڅیزه ګرځول۔
**ـــــکېدل** :- بابیزېدل، ضائع کېدل باطل ګرځېدل ، ناپکاره او ناڅیزه ګرځېدل۔
**کوره** :- (کو + رَ ) د ,, کور ،، یو قسم جمع ده۔ چې د شمار تورو سره راځي۔
لکه : د ادم خېلو لس کوره هلته اباد شول۔
**کوره** :- ( کو + رَ ) د ,, کور ،، مجروري وغیره شکل دے ۔لکه: سحر وختي له کوره ووتم۔
**کوره**:- (کو+رَ) (اس، مو،ج ـــــ رې) عرض،درخواست، التماس، کینګار ۔
**کوره** :- ( ک + و / ؤ + رَ )(اس مو ، ج ـــــ رې ) یو قسم غله یا دال چې په غرونو کښې پیدا کېږي۔ او د انګولي طور پخه ولے شي۔ بوټي ته ئې هم ,, کوره ،، وائي۔
**کوره** :- ( کو + رَ )(ف ، اس ، مو ، ج ـــــ رې) بټې ، د خښتو وغېره د پخولو بټه۔
**کورهار** :- ( کو + ر + ها + ر )(اس ، صوت ) (۱) د کور کور اواز (۲) د چیلم د راښکلو اواز(۳) د چیندخو اواز۔
**کوري** :- ( کو + ر + ي )(اس ، مو )(۱) توپ ، انبار ، ډېرے (۲) وړه شان غونډۍ ، خټ ، وړه شاګۍ۔
**کوري** :- ( کو + ر + ي )(اس ، مو ) د غوا د لوشلو لرګین لوښے۔
**کوري** :- ( کو + ري) (ف تر ، اس ، مو ) ړوند والے ، ړوندتوب۔
**کوري** :- ( کو + ري) (اس ، مو ) د پېزار یو قسم دے۔
**کوري** :- ( کو + ر ي )(اس ، مو ) یو قسم ستک ، مترکه ، څټکے۔
**کوړې** :- ( کو + رې) (ف تر ، صف ، ج ) د ,, کوره ،، جمع ده۔ ړندې ، چې بینائي نۀ لري۔
**ـــــسترګې** :- ړندې سترګې ، نابینا سترګې
چې د غوښت هغه دیدن دے ورته ګوره
که خوشحاله نۀ دي کوړې سترګې ستا
**کوړې** :- ( کو + رې) (اس ، صوت )د خر د شړلو اواز۔
**کوړې** :- ( ک + رې )(اس ، صوت )(۱) د سپي د شړلو اوا ز (۲) (حقارةً) بني ادم ته هم وئیلے شي ورک شه۔
**ـــــشه** :- (۱) د سپي د شړلو دپاره وئیلے شي (۲) د بني ادم د شړلو دپاره (حقارةً) وئیلے شي۔ ورک شه۔
**ـــــشه سپیه د چا د مخه** :(جمله) بني ادم دپاره (حقارةً) په داسې موقع وئیلے شي۔ چې دغه بني ادم څۀ بد چا سره وکړي۔ خو دغه بني ادم ورته په خواب کښې د بل چا دوست یا خپل د لحاظه ورته نقصان ونۀ رسوي۔ یعني اے سپي سرپه ورک شه ، هېڅ سزا یا ځواب نۀ درکوم ځکه چې تۀ زما د دوست یا د خپل سره تعلق دے۔ د هغه مخ او لحاظ کوم۔
**ـــــکول** :- (۱) سپے یا سپي شړل ، سپي یا سپو ته د شړلو دپاره کوړې وئیل۔ ستا د خبره مې توبه شه (ده) خو دا سپي دې رانه کوړې کړه۔ ( متل )
(۲) حقارةً یا طنزاً ، بني ادم (د چا نه) شړل۔
**کورے** :- ( ک + ؤ + رے )(اس ، مذ ، ج ـــــ ري )( ۱ ) وړوکي ترنګښ (۲) د وښو یا د میزري نه جوړه شوې هغه جالي داره ټوپۍ شان ، کومه چې د ښاروو خولې ته اچولے شي ۔(چې په لاره ګیاه ونۀ خوري) ۔یا د پۍ ښښونکي بچي خولې ته اچولے شي چې د مور (غوا ، مېښه ) پۍ ونۀ ښښي
**خولې ته ـــــ اچول** :- مجازاً خوراک نۀ کول۔ د خوراک نه خولۀ بندول۔

روژه (روجه ) نیول ، (خصوصاً داسې روژه (روجه) چې نور لوازمات ئې نۀ پوره کوي )۔
**کورے** :- ( ک + و + رے )(اس ، مذ )(۱) کروڅکے ، هغه دانې چې مربه ترې جوړولے شي۔ یا په پخلو کښې ئې اچوي۔ (۲) د زرشک د ونې لرګے۔
**کورے** :- ( ک + و + رے )(اس ، مذ ، ج ـــــ ري) رخونو (کرښو) واله ، مهره یا مرۍ
کورے هم لکه یاقوت هسې لیدے شي
جوهري ئې خبردار دے ، په قیمت (خوشحال )
**کورے** :- ( کو + رے )(اس ، مذ ، ج ـــــ ري) د جوار وغېره ډېر لوے ټوپ ، لوے درمند ۔
**کورے** :- ( کو + رے )(اس ، مذ ، ج ـــــ ري) نمکدان ، د مالګې لوښے
**کورے**:- (کو + رے )(اس ، مذ ) (احمد زئ) چموسه ، یو قسم پېزار دے
**کوریا** :- ( کو + ر + یا )(اس ، مع )د ایشیا د نمر خاتۀ څنډې ته یو ملک۔ اوس په دوو برخو کښې وېشلے شوے دے ۔شمال (قطبي) کوریا ، او جنوبي (سهېل ) کوریا ۔
**کوریز** :- ( کو + ري + ز ) (انګ ، اس ، مذ ) خاص ډاکي ، مخصوص ډاک وړونکے ، خاص قاصد ۔
**کوریز** :- ( کو + ري + ز )(صف ) کور سره تعلق لرونکے ، کورنے کوري۔
**کوریل** :- ( کو + ري + ل ) (اس ، مع ) مرجان ، (کورل )۔
**دـــــجزیرې** :- هغه خاص جزیرې چېرته چې مرجان پیدا کېږي۔ یا چې دغه جزیرې د مرجان د چینجو نه جوړې شوې وي۔ د کورل جزیره۔
**کوړ** :- (ک+و + ړ )(هـ ، اس ، مذ )( ۱ ) مرض ، جراثیمي بیماري (۲)برص، پیس ، برګے ، پمنتوب (هــ کوړھ)۔
**کوړ** :- ( ک + و + ړ ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) هغه لرګے چې د سر د سوري نه ئې د پۍ شاربلو میل (داب ) راوتے وي۔
**کوړ** :- ( ک + و + ړ ) (صف ، مذ ، موـــــه) هېڅ ، لاشے ، ناڅیز ، چې په زغرو په څپو کړې نبزې ځوړې
چې نبکي درڅخه نشته واړه کوړ ئې (خوشحال )
**کوړ** :- ( کو + ړ )(صف ، مذ ، موـــــه) زوړند ، اوېزاند ، یو طرف ته مائل یا کوږ شوے۔
**کوړ** :- ( کو + ړ )(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د اوبو شکن
**کوړ** :- ( کو + ړ )(هـ ، اس ، مذ ) جذام ، برګے ، پیس (د طب په کتابونو کښې دا لفظ د پښتو ګڼلے شوے دے ) (هندي ــ کوړھ)
**کوړ** :- ( کو + ړ )(اس ، صوت ) (۱) د بوتل یا د صراحۍ نه د اوبو د را اړولو په وخت د قړ قړ په شان اواز ۔قُلقل (۲) د ګېډې د باد اواز ، قړ قړ۔
**کوړ** :- ( کو + ړ )(هـ ، اس ، مذ ) (۱) دروغ ، (۲) دروغجن (خوشحال )
که په زغرو په چپو کړې نبزې ځوړې
چې نبکي درڅخه نشته واړه کوړ ئې (خوشحال )
**کوړازغے** :- ( کو + ړ + ا + ز + غے )(پ تر ، اس ، مذ ) یو قسم ازغن (اغزن ) بوټے ، چې د اوښانو خوراک دے۔
**کوړاغ** :- ( کو + ړا + غ )(اس ، مذ )تبک ، تبق ، تبج۔ د حېوانتو د یو مرض نوم دے ۔چې خولۀ او پښې ئې وپرسېږي او د خولې نه ئې لاړې بهېږي۔
**کوړاکوړا** :- ( کو + ړا + کو + ړا ) (صف ) بربت چې تاو کړې او نېغ ودرولے شوي وي۔

**کوړتک** :-( کو + ړ + ت + ک )(اس ، مذ ) شیره ، اماچ ، هغه شیره چې د غنمو د اوړو ، غوړو او د سبزۍ نه جوړولے شي۔

**کوړځ** :-( کو + ړ + (ت) س )(اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) د زمکې د لاندې د پناه لوے ځاے (عموماً په دشتونو او ځنګلونو کښې جوړولے شي )۔

**کوړډنبله** :-( کو + ړ + ډ + م + ب + لَ ) (اس ، مو ، ج ــــ لې ) لوے دنبل ، غټه تتکۍ ، بنبخه ، لونه۔

**کوړکوړ** :-( کو + ړ + کو + ړ )(اس ، صوت ) (۱) د چیلم د ځنبلو اواز ، قوړ قوړ (۲) د صراحۍ وغېره نه د اوبو د اړولو اواز ، قلقل۔ (۳) د ګېډې د قړ قړ اواز۔

**کوړکوړۍ**:-(کو+ړ+کو+ړ+ۍ) (اس،مو) مشهوره مرغۍ، د ګوګوشتکو (فاختهٔ) یو قسم دے۔سره پوختکه ، په مروتو کښې ورته سرکځې وائي۔

**کوړکونډایه** :-( کو + ړ + کو + ن + دا + ي ) (اس ، مو ، ج ــــ ئې ) کالکونډۍ ، کچه خربوزه۔

**کوړکه** :-( کو + ړ + کَ )(اس ، صف ، مو ، ج ــــ کې ) هغه چرګه چې اګو د اچولو نه پس ئې اګۍ اچول بس کړي وي۔

**کوړکۍ**:-( کو + ړ + ک + ۍ )(اس ، مو ، ج ــــ کۍ / ګانې ) لټې ، هغه اله چې مرغۍ په کښې نیسي۔دام۔

**کوړکۍ** :-( کو + ړ + ک + ۍ )(اس ، مو ) هغه دوه غاښیز لرګے چې په کښې د غنو منو ، یا د بوټو پنډ د وړلو دپاره تینګوي۔

ــــــ**کول** :-(۱) نښلول ، راګیرول (۲) په قوت سره (ځوک ) راغونډول۔ (۳) په فریب او دوکه کښې راوستل۔

**کوړکے** :-( کو + ړ + کے )(اس ، مذ ، ج ــــ کي ) په لوے پټي کښې وړوکے پټے۔ کیارۍ ، په لوے پټي کښې واړهٔ واړهٔ لختي شان۔

**کوړکے** :-( کو + ړ + کے )(اس ، صوت ) د کوړ کوړ مسلسل اواز ، کوړهار۔

**کوړم** :-( کو + ړ + م )(اس ، مذ ) ډوغل ، ډوله ، چې د سیند وغېره په ژورو (جورو) ځایونو کښې وي۔

**کوړم** :-( کو + ړ + م )(اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) ډنډ ، ولاړې اوبهٔ ، ډم ، ناور ، ډېرې ژورې ولاړې اوبهٔ۔

دــــ**کاڼې کېدل** :- کنایه ، د یو ځیز ښخې ورکېدل۔

**کوړمګے** :-( کو + ړ + م + ګے )(اس ، مذ ، ج ــــ ګي ) وړوکے قدرتي تالاو۔تالابګے ، (چې قدرتي جوړ شوي وي )۔

**کوړمن** :-( ک + و + ړ + م + ن )(صف ، مذ ، مو ــــ ه ) ناروغه ، ناجوړه ، بیمار ، مریض ، کړمن ، کړکیچو۔

**کوړمه** :-( کو + ړ + م )(اس ، مو ، ج ــ کوړمې ) ټبر ، خاندان ، د کور خلک ، کهول ، ګنډه۔

**کوړمې** :-( کو + ړ + مې ) د ,, کوړمه ،، جمع ده۔

ــــــ**اوبهٔ** :- د لاړې او ورې (جورې) اوبهٔ۔

**کوړنج** :-( کو + ړ + ن + ج ) (اس ، صوت ) د خولې نه اواز اېستل ، د خولې نرے شان اواز۔

**کوړنج** :-( ک + و + ړ + ن + ج )(اس ، صوت ) د سپي هغه اواز چې د وهلو په وخت د فریاد په طور وباسي۔کنوارے۔

**کوړنجار**:-( ک + و + ړ + ن + جا + ر ) (اس صوت ) د سپي کنوار ، د سپي هغه سلسل اواز ، چې ځوک ئې ووهي یا ئې خوږ کړي۔

**کوړنجے** :-(ک + و + ړ + ن + جے ) (اس ، صوت ) د سپي کنوار ، هغه وخت چې ځوک وهي۔کوړنجار۔

**کوړنکه** :-( کو + ړ + ن + کَ )(اس ، مو ) حلوا۔

**کوړنګ** :-( کو + ړ + ن + ګ )(صف ، مذ ، مو ــــ ه ) لوړ دنګ خو بې ډېه شان سړے۔

**کوړول**:-(کو + ړ + ؤ + ل ) (مص ) مائل کول ، اویزانول ، زوړندول (لکه قبرته)

**کوړونه** :-( ک + و + ړ + ؤ + ن )(حمص ) ډېرے کونه ، انبارونه۔

**کوړون**:-(کو + ړ + ؤ + ن )(حمص ) اویزاندونه ، زوړندونه ، کوړکونه،مائل کونه۔

**کوړونه** :-( کو + ړ + ؤ + ن ) (حمص ) د کوړ کوړ اواز اېستنه ، د چیلم نه د ځنبلو په وخت د قړ قړ اواز اېستنه۔

**کوړونکے** :-( ک + و + ړ + وو + ن + کے ) (اس ، فا ، مذ ، جي ــــ کي ) ډېرے کوونکے ، انبار کوونکے۔

**کوړوونکے** :-( کو + ړ + وو + ن + کے )(اس ، فا ، مذ ، ج ــــ کي ) اویزاندوونکے ، زوړندوونکے ، کوړ کوونکے ، مائل کوونکے۔

**کوړوے** :-( کو + ړ + وے )(اس ، مذ ، ج ــــ وي ) د غلې وغېره د اندازه کولو یوه پخوانۍ پېمانه ، کوړے ، (چې د قندهار د یو چارک یا د کابل د دوه نیمو پاوو هومره وي )۔

**کوړوے** :-( کو + ړ + وے )(پ ، اس ، مذ ، ج ــــ کوړوي ) غلې اوړو وغېره اندازه کولو یوه پېمانه۔په یوسفزو ، اورکزو وغېره علاقو کښې هم دا پېمانه (کوړوے) مروجه وه۔خو په ګنجائش کښې ئې فرق دے۔ وزیر وغېره علاقه کښې د ,, ریژي ،، (د پېمانې نوم) ځلورمه برخه وي ۔چې نشي نو په آنه کوړي نغن نشي (متل)

**کوړوے** :-( کو + ړ + وے ) (اس ، مذ ، ج ــــ وي ) د لوخې یا د مېزرې نه جوړ شوے وړوکے شان شکرے۔

**کوړه** :-( ک + و + ړَ ) (اس ، مذ ، ج ــــ ړي ) انبار ، ډېرے ، ټوپ ، ټوپکے

ــــــ**کول**:- انبار لګول ، انبارول، ډېرے کول ۔ډېرے جوړول ، ټوپکے جوړول۔

ــــــ**کېدل**:- ټوپ کېدل ، انبار کېدل ، ډېرے کېدل۔

**کوړه**:-( کو + ړَ )(صف ، اس ، مو ، ج ــــ ړې ) تاو راتاو ، منجیله ، پېچلے

د یارۍ هسې ګرانه ماشوره ده
چې د عقل په لاس نهٔ ورځي کوړه ده (حنان )

**کوړه** :-( کو + ړَ )(اس ، مو ) د اکوړو سره لوبه ، د غوزانو لوبه۔

**کوړه** :-(کو + ړَ )(اس ، مو ) یو قسم غرئیز ازغن (اغزن) بوټے چې اوربښهٔ اخلي۔

**کوړه** :-(کو + ړَ )(هـ ، اس ، مو ، ج ــــ ړې ) کروړه ، مجرمانو له د سزا ورکولو اله۔

**کوړه**:-(کو + ړَ )(صف ، مذ ، مو )(۱) کج بحث او جنجالي سړے (۲) و ــــ کوړه

**کوړه** :-( کو + ړَ ) (هـ ، اس ، مو ) خخله ، خس و خاشاک ، بې کاره ځیز۔

**کوړې** :-(کو + ړې )(هـ ، صف ) (۱) د کوړ (مرض) سره تعلق لرونکے تواضح ئې هسې چې که کوړې مرض به ورسره راغے ..... (دستارنامه) (۲) د کوړ (جذام) د مرض مریض۔

**کوړې چرګ** :-(کو + ړې + چ + ر + ګ ) (پ تر اس ، مذ ، ج ــــ ګان ) کولنګې چرګ ، جنګې چرګ۔

**کوړې** :-( کو + ړې ) د ,, کوړه ،، جمع ده۔کروړې۔

ــــــ**لګول** :- په کروړو وهل۔په کروړو د وهلو سزا ورکول۔

**کوړۍ**: -(کو + ړ + ی)(اس ، مو) د غلې وغېره د اندازه کولو یو پیمانه ـ چې د اوړې څلورمه برخه وي کوړے ـ

**کوړۍ**: -( کو + ړ + ی)(اس ، مو) حلقه د زلفو یا د پړي وغېره ـ

**کوړۍ**: -(کو + ړ + ی)(صف) د مار هغه حالت چې تاو راتاو شوے پروت وي ـ منجیله شوے ، کوږ راکوږ ـ

**کوړۍ**: -(کو + ړ + ی)(اس ، مو) د اوښ د زنګون بند ، ګوتته ، د زنګون سترګه ـ

**کوړۍ**: -( کو + ړ + ی)(اس ، مو) ډمبره ، بمبره ، ټنډه عالبوزه ـ

**کوړۍ**: -( کو + ړ + ی)(اس ، مو) طومار ، اوږد خط وغېره ، تومار ـ

**کوړۍ**: -( کو + ړ + ی)(اس ، مو) په یو لغت کښې ورته ,, دینار ،، لیکلي دي ـ (چېرته مثال ئې په لاس رانغلو) په پښتو کښې به ئې دینار ته ,, دوړی ،، وے ـ کېدے شي چې کوړۍ ددې بدل شکل وي ـ

**کوړۍ**: -( کو + ړ + ی)(هـ ، اس ، مو) (۱) د ځینو څیزونو په شمېر کښې د شلو دپاره استعمالېږي ـ شل ، (ار ، هــــ کوړي) ـ

**کوړۍ**: -(کو + ړ + ی)(اس ، مو) یو قسم نقش دے ـ چې د وربښمو یا د کلابتون (زرین تارونه) نه په کوله (کلاه) وغېره کښې جوړولے شي ـ

**کوړۍ**: -(کو + ړ + ی)(اس ، مو) د غنمو د ګېډۍ وړوکے شان ټوپ ، د لو کړو غنمو ټوپکے ـ

**کوړۍ**: -(کو + ړ + ی)(اس ، مو) د لرګي هغه وړه شان ټوټه چې د ونې د تنې نه جوړه شوې وي ـ او غوښه (قیمه) پرې ټکولے شي ـ (هند ـــ کهوړي) ـ

**کوړۍ**: -( کو + ړ + ی)(اس ، مو) یو قسم خودرو ، ځنګلي سبزي ده ـ

**کوړۍ**: -( کو + ړ + ی) (هـ ، اس ، مو) (۱) کنجکه (۲) ډېر معمولي څیز ، حبه

(پخوا په کونجکه د سکې په طور استعمالېده ـ او د یوې پیسې به ډېرې ګنډې کېدې) (ار ـــ کوړي) ـ

**کوړے**: -( کو + ړے)(اس ، مذ ، ج ـــــ ړي) هغه زخم چې خراب شوے وي ـ او چینجي په کښې شوي وي ـ

**کوړے** :-(کو + ړے)(اس ، مذ ، ج ـــــ ړي) وړوکے سخے ، د غوا بچے

**کوړے**: -( کو + ړے)(اس ، مذ ، ج ـــــ ړي) یو غرئیزه ونه ده ـ چې پلنې پلنې پاڼې لري ـ

**کوړے**: -( کو + ړے)(اس ، مذ ، ج ـــــ ړي) لرګین کوتک ، (د لنګرۍ)

**کوړے**: -( کو + ړے)(صف ، مذ ، مو ـــــ ړې) زوړند ، اویزاند ـ

ـــــ **کول**: -زوړندول ، اویزاندول ـ

**کوړے** :-( کو + ړے)(اس ، مذ ، ج ـــــ ړي) کورنۍ ، خاندان ، کوړمه

لـه دې لوبو نه وا نۀ ړېدې اسمانه

ورانوې سوغالي سم کوړې ودانه (جناب)

**کوړے**: -( کو + ړے)(اس ، مذ ، ج ـــــ ړي) انبار ، ټوپ

د کـــوړ غنـم اوربشې

دوه کوړکه پوهه تۀ شې (فضل نامه)

ـــــ **کوړے**: -(ـــــ کو + ړے)(پ تر ، صف) حلقه حلقه ، دائره دائره

جهنـم دے لاندې باندې

ته اوږمې سر زمکې لاندې

اویـــا زره ئې کـړي دي

ملایک کوړے کوړے دي (اکبر) (زره پانګه)

**کوړے** :-( کو + ړے)(اس ، مذ ، ج ـــــ ړي) (و ـــــ کوړوے) ـ

**کوړېدل** :-( کو + ړې + د + ل) (مص)(و ـــــ کوږ کېدل) ـ

**کوړېدل** :-( کو + ړې + د + ل) (مص) زوړندېدل ، اویزاندېدل ، په ښکته مائل کېدل ـ

**کوړېدل** :-( کو + ړې + د + ل) (مص) چیلم وغېره نه د کوړ کوړ (قړ قړ) اواز راوتل ـ کوړړېدل ، قړړېدل ـ

**کوړینګ** :-( کو + ړي + ن + ګ) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغه سړے چې دنګ لوړ وي ـ خو چې ملائې راکږه شوې او کوب غونډې ئې راوتے وي ـ یا ئې اوږې راوتې وي ـ لوړ دنګ بې ډوله سړے ـ

**کوز** :-( کو + ز)(صف ، مذ ، مو ـــــ ه) (۱) ښکته ، لاندې (۲) هغه علاقه ، چم ، کلے چې د بل علاقې چم ، کلي نه مخ په ښکته (اباد) وي ـ لکـه: کوز تهکال ، کوز کندے ـ

ـــــ **او پاس** :-(ـــــ(زو) پا + س)(پ تر ، ظر) (۱) ښـکته او پورتـه ، لاندې باندې (۲) کمے زیاتے ، فرق ، لکه: په دې کښې هېڅ کوز او پاس نشته ـ

د سعید پـه زړۀ د یار څهره رقم شوه

نورې واړه کوز و پاس له زړۀ زائیلې (سعید خټک)

ـــــ **او پاس تر خولې وېستل** :- لاندې باندې خبرې د خولې نه ایستل ، غلطې یا ناشولتې خبرې کول ـ

شوني بـه کوز و پاس ذره تۀ نۀ کړې

بیهوده تر خولې وباسې کوز و پاس (حمید)

ـــــ **او پاس کتل** :-چاته د پښو نه تر سره پورې کتل ـ پوره پوره جائزه یا جاج اخېستل ـ

ـــــ **او پاس کول** :- لاندې باندې کول ، کمے زیاتے په کښې راوستل ـ

ـــــ **او پاس نۀ لرل** :-کمے زیاتے نۀ لرل ، پوره په پوره ,, بودل ،، هېڅ فرق نۀ لرل

ـــــ **کتل، چاته** :-سپک کتل ، سپک ګڼل ، د ځان نه لاندې ګڼل ـ حقیر ګڼل ، کم ګڼل ـ

ـــــ **والے**: -(ـــــ وا + لے) (اس ، مذ) ښکته والے ، لاندې توب ، په درجه کښې کمے ـ

**کوز** :-( کو + ز)(ف ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه)کوږ ، خمدار ، خمیده ، کړوپ ـ

**کوزده**: -(کو + ز + دَ)(اس، مو ، ج ـــــ دې) کوژده ، کوژدن ، کوئیدن ، نیوکه

ـــــ **وال** :-(ـــــ وا + ل) (اس ، مذ) کوزدنے (کوژدنے ، کوئیدنے) واله ـ هغه چې کوزدن (کوئېدن) ئې شوې وي ـ

**کوزړګۍ** :-( کو + زړ + ګ + ی) (اس ، مو) د ,, کوزه ،، تصغیر دے ، وړه شان کوزه ، وړوکې کوزه ـ

**کوزړۍ** :-( کو + ز + ړ + ی)(و ـــــ کوزړګۍ)

**کوزړۍ** :-( کو + ز + ړ + ی)(اس ، مو) د سبزۍ یو قسم دے ـ چې پخولے شي ـ

(د اوړګۍ ، ګندنا په شان) ـ

**کوزغالے** :-( کو + ز + غا + لے)(اس ، مذ ، ج ـــــ لي) د خاورین لوښي لویه ماتـه ټکړه ـ چې سپو ، چرګـانو تـه پـه کښې اوبـۀ یا خـوراک کښېښودے شي ـ

**کوزمیک** :-( کو + ز + مي + ک) (انګ ، صف) دنیاوي ، عالمي ، کهاني ـ

**کوزندک** :-( کو + ز + ن + د + ک)(صف ، مذ ، مو ـــــ ه) کجے ، کچول ، هغه سړے چې (لاس او) پښې ئې کږې وي ـ

**کوزنې** :-( کو + ز + نې)(اس ، ظر) (۱) ښکتنې ، لاندینې (۲) هغه چم ، کلے وغېره چې د بل چم کلي وغېره نه مخ پـه ښکته وي ـ کوز لکه :

کوزنې لغمان

**کوزول** :-( کو + ز + و + ل ) (مص) ښکته کول ، لاندې کول .د کوم بره ځای نه ښکته ځای ته راوستل. لکه :- د اس نه کوزول.

**بار ـــــ(دسره)** :د سر نه ذمه داري لرې کول ، خپله ذمه داري پوره کول.

**سر ـــــ**:-(س+ ر ـــــ ) (۱) سر ټيټول، د چا حکم منل (۲) چاته عاجزي کول.

**کوزه** :-( کو + زَ د ,, قبضه ،، بدل شکل دی . (و ـــ قبضه).

**ـــــ کول** :-(و ـــ قبضه کول).

**کوزه** :-( کو + زَ )(ف ، اس ، مؤ ، ج ـــ زې) د اوبو مشهور خاورين لوښی چې اورده غاړې لري.او د اوبو د راوتو دپاره سخت هم لري.د اودس يا د لاتبلو دپاره پکارولی شي.مسينې کوزې هم وي چې مختلف شکلونه لري. په فارسۍ کښې هغې کوزې ته وائي چې لاستی هم لري.

**په ـــ کښې درياب / سمندر بندول** :- لوی مضمون يا بيان په مختصرو الفاظو کښې بيانول.

**کوزه** :-( کو + زَ )(صف ، مو ، ج ـــ زې) د ,, کوزه ،، تانيث دی.

**ـــــ پشت** :-( ـــ پُ + ش + ت) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) کړې ملا واله ، کبړی ، شاټوغی کوتار ، کړوپ (۲) مجازاً اسمان.

**کوزپانه** :-( کو + ز + پا + ڼ) اس ، مو ، ج ـــ ړې) په خاص دود سره د زوم پيژندګلو (پيجندګلو) دناوې د کور سره کول.

**کوژ** :-( کو + ژ )(و ـــ کوږ)

**کوژدن** :-( کو / کُو + ژ + د + ن) (و ـــ کوزده)

**کوژدن** :-( کو / کُو + ژ + د ) (و ـــ کوزده)

**کوژک** :-( کو + ژ + ک) (و ـــ کوړک)

**کوژه** :-( کو + ژ )(اس ، مذ ، ج ـــ ژې) د روژې يا روژې ضد ، کوجه ، بې روژې ، بې روژې.

**کوږ** :-( کو + ګ / ژ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان / يان) مشهور ځنګلي ځناور ، کفتار ، چرخ ، (ار : لګړبګړ)

د تقدير تبديل تحويل نشته بې شکه
ولې کوږ دی د پلنګ جنګ ته خبر نشي (حافظ)

**کوږ** :-( کو + ګ / ژ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) د سم ضد ، ناسم ، چې نېغ نۀ وي. (د کوږ مذکر جمع کاږۀ راځي.او د کږه (مو) جمع کږې).

**ـــــ غالی** :-(ـــ غا + لی )(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ لي) د کـــوږ (ځناور) د اوسېدلو ځای.

**ـــــ لرګی** :-(ـــ ل + ر + ګی) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ګي) مجازاً ضدي سړی، ورانې اچوونکی سړی .اصلاً په بار کښې کوږ لرګی نه ماخوذ دی.

**ـــــ نيت** :- هغه نيت چې سم نۀ وي دوکه ، فريب.

**ـــــ ووږ** :-(ـــ وو + ګ / ژ) (پ تر ، صف) ,, ووږ ،، تابع مهمل دی .د تاکيد دپاره راوستی شوی دی .ډېر کوږ ، ډېر ناسم ، ډېر کږ ، ډېر خمدار.

**په بار کښې ـــــ** :- هغه سړی چې په روان کار کښې خنډ اچوي .يا سمه خبره ورانوي. مجازاً ضدي ، او په سم کار کښې اړيکه يا ورانې اچوونکی. (د لرګو په بار کښې چې کوم لرګی کوږ ووږ وي .د دغې لرګي په وجه بار سم نۀ تړلی کېږي.د دې نه برنۍ محاوره جوړه شوه).

**کوږبل** :-( کو + ګ / ژ + ب + ل) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) کوږ ، کفتار ، (مشهور ځناور).

**کوږپښی** :-( کو + ګ / ژ + پ + ښی / ښې )(اس ، مذ ، (اڅکزي) بدائي ، اوئم ، ويار ، تفاخر.

**کوړک** :-( کو + ګ / ژ + ک )(اس ، مع )د چمن (بلوچستان) د علاقې مشهوره دره او د ليدو ځای.

**کوړل** :-( کو + ګ / ژ + ل ) (مص)(۱) حلالول ، ذبح کول

په فرمان دښمنه هسې سړي وژني
لکه کوړ قصابان مه بيعه مړونه (هجري)

(۲) کوتل ، زخمي کول.

**کوړل** :-( کو + ګ / ژ + ل ) (مص)(۱) څرمن وښکل (۲) له نظره غورزول ، رد کول ، اهميت يا وقعت نۀ ورکول.

**کوړل**:-(کو + ګ / ژ + ل ) (ک + و+) (مص) کوښښ کول ، کوښښ کول ، سعي کول ، خواري کول ، لاس و پښې وهل ، زحمت او محنت کښل ،

لينده ورغومی صحبت هم زيان لري
په دا منزل د په بهار کوړي (خ ، خ ، خ)

**کوړلی** :-( کو + ګ / ژ + لی )(اس ، مف ، مذ ، ج ـــ لي) (۱) څرمن ايستلی (۲) رد کړی ، د نظره غورزولی.

**کوړنګوړی** :-( کو+ګ / ژ + ن+ ګو+ړی) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي)(۱) سابۀ ، ساګ ، سبزي (۲) اوړکی ، ګندنه.

**کوړنه** :-(کو + ګ / ژ + نَ) (حمص) څرمن وښکنه.

**کوړنه** :-(کو + ګ / ژ + نَ)(ک + و ـــ) کوښښ ، سعي ، زحمت کښنه ، محنت کونه

زۀ به هسې ولې خوار وم
که د مال مې وی کوړنه (خوشحال)

**کوړول** :-( ک + و + ګ / ژ + ؤ + ل) (حمص) حرکت ورکول ، يو طرف ته ورو ورو ور روانول ، خوځول ، په زلزل کول ، زمکه په دوه واړه وکوړم ، وبه وژنم په وړومبي کوړولي واړه ژوي !(خبرالبيان ).

**کوړول** :-( کو + ګ / ژ + ؤ + ل) (مص) کوږ کول ، نېغ والی يا سم والی ، نۀ پرېښودل.

**کوړوونکی** :-( کو + ګ / ژ + وو + ن + کی) (ک + و + ـــــ ) (اس ، فا ، مذ ، ج ـــ کي) کوښښ کوونکی ، سعي کوونکی ، لاس پښې وهونکی.

**کوړه** :-( کو + ګَ / ژَ) (اس ، مو ، ج ـــ ړې)کوښښ ، خواري ، زيار.

**کوړېدل** :-( ک + و + ګې / ژې + د + ل) (مص) خوزېدل ، حرکت کول ، (ورو ورو) تلل.

**کوړېدل** :-( کو + ګې / ژې + د + ل) (مص)کوږ کېدل ، نېغ والی يا سم والی. نۀ پاتې کېدل ، کج کېدل ، خميده کېدل.

**کوس** :-( کو + س) (ف اس ، مذ ، ج ـــ ونه) نغاره ، نوبت ، ډمامه.

**کوس** :-( کو + س) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ان) خنزير ، سور ، بد ځناور چې ظاهر باطن ئې دواړه خبطه وي

منافق سړی بتر ګڼه تر کوسه (خوشحال)

**کوس** :-( کُ + س) (و ـــ کُس)

**ـــــ پتيره**:- لشمکی، بد مزاجه، جنګيالۍ، لکه: ډېره کوس پتيره ښځه ده.

**ـــــ پتاخه** :-(ـــ پ + تا + خَ) (پ تر ، صف ، ج ـــ خې) کنځل دي ، فاحشه ، بدچلنه ښځه.

**ـــــ تپزن** :-(ـــ تپ + ز + ن) (پ تر ، صف) بې غېرته ، هېڅکاره.

**ـــــ خرپ** :-(ـــ خ + ړ + پ) (پ تر ، صف / اس ـــ ان) کنځل دي ، د کنځلو په طور وئيلی شي.

**ـــــ لکه** :-(ـــ ل + ک) (پ تر،صف ، اس ، مو ، ج ـــ کې) بد کاره ، بدچلنه ښځه ، فاحشه ، د کنځلو په طور استعمالېږي

**ــــــلکې** :- (ـــــــل + کې)(۱) د ,, کس لکه ،، جمع ده۔ (۲) د ,, کس لکه ،، اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل دے

**دــــــلکې زويه** :-

**دــــــلکې بچيه** :-کنځل دي۔د بدچلنې ښځې زويه ، د فاحشې ښځې زويه

**کوستاريکا** :-( کو + س + تا + رې + کا )(اس ، مع ) کوســـــتوريکا يـــــا کاستاريکا ، د يو ملک نوم ، چې دارالحکومت ئې ,,کولون،، دے۔

**کوسرو**:- (کو + س + رو ) د ,, کوسرے ،، اضافي او مجروري (متغير) شکل۔

**پهـــــوهل** :- په کوسرو د وهلو سزا ورکول ، حقيره سزا ورکول۔ مجازاً بې عزتي کول ، بې عزته کول۔

**کوسره**:- (کو + س + رَ )(هـ ، اس ، مو ، جــــــرې) کوسره ، د ښځو پېزار ، سليپر (هــــ کهوسره) (پخوا چې به د زنانهٔ ؤ پښې زړې شوې نود پوندو شاته ځاے به ئې ورله چيت او چپړے کړ ۔او لکه د سليپرو به ئې اغوستلې)

**کوسري** :-( کو + س + رې )(اس ، جم ) شنے ، د يوې ونې مېوه ده ۔چې تېل ترې وېښکے شي۔

**کوسرې** :-( کو + س + رې )د ,, کوسره ،، جمع ده۔

**کوسرۍ** :- (ک + و + س + ر + ی)(اس ، مو ) بدچلنه ، فاحشه ښځه ، بدکاره ښځه۔

**کوسرۍ** :-( کو + س + ر + ی) (اس ، مو) کوسرو والـه ، چيتر ماره ، سپک سپاندې ښځه۔

**کوسړه** :-( کو + س + ړَ ) (هـ ، اس ، مو ، جـــــــړې) زړه پڼه ، خصوصاً هغه زړه پڼه چې پونده ئې ماته کړے شي۔

خلاص به شي له دې بلا عبدالعظيم

پــه تندې که ګوزار وکړې په کوسړه

(هند ـــ کهوسره)

**ـــــــــخوړل** :- په کوسړو وهلے کېدل۔ذليله سزا موندل۔

دا مې کوسړې د تنـــــدې د هغه يـــار وخوړې

که سر بلند شوم په جهان کنبې د هما په مېرو (حسين)

**پهــــ / کوسړو وهل** :- په زړه پڼه وهل ، مجازاً د ذلت سزا ورکول۔ذليل کول۔

يــو ځـــل ئې سر شين کړے په وهلو د کوسړو

بيا ئې ترې سپينې وښکې په مېچن ئې ورولې (علي خان)

**کوسموس** :-( کـو + س + مـو + س)(انـګ ، اس ، مـذ ) (۱) نـړۍ ، دنيـا ، کوسموس (۲) يو ډول هسک بوټے چې په باغچه کښې شين کېږي۔

**کوسميک** :-( کـو + س + مـې + ک) (انـګ ، صـف) دنيـاوي ، عـالمي ، جهاني ، کهاني کوزمک۔

**کوسو** :-( کو + سو) (ق ، اس ، مذ ) غونجـه يـا پلېټ ، د بـې لسـتونو جامې چې د لمڅي نه جوړه شوې وي۔

**کوسه** :-( کو + سَ ) (اس ، مذ ، جــ ګان ) هغـه سړے چې ږيره برېت ئې نهٔ کېږي۔

**کوسه** :-( کو + سَ) مونث د کوس ، (عام نهٔ استعمالېږي) خنزيره ، سوره ، د بد ځناور ماده۔

دا جهان پټې پټے دے جنس لـه جنس سره خوښي کا

مارلـه مـاره يـوز لـه يـوزه خـرس لـه خرسـه کـوس لـه کوسـه (خوشحال)

**کوسۍ** :- (کُ / کـو + سَ + ی)(اس ، مـو )کنځـل دي ، بدچلنـه ښـځه ، فاحشه ښځه۔

**کوسې** :-( کو + سې ) (اس ، مذ ، جـــــان) هغه خاص غونجے يا پلېټونه چې د لستونو واله په لمدې جوړ شوے وي۔

**کوسې** :-( کو + سې ) (اس ، مذ ، جــــان) نوسے ، نمسے ، نواسه۔

**کوسې** :-( کو + سې ) (اس ، ج) هغه خاص پېزار چې د بل پېزار د پاسه اغوستے شي ۔(خصوصاً واورينو علاقو کښې) لکه :- فلانے سره د خپل کوسې په کوټه راننوت د واورو ډکې کوسې ئې زما په غالۍ وڅانډۀ۔

**کوسيره** :-( کو + سي + رَ ) (پ ، اس ، مذ ) (۱) کاسير (۲) کونې د غلهٔ لوس نه درې د کوسيره کنه نه درې۔ (متل-وز)

**کوش** :-( کو + ش) (اس ، مذ )کوښښ ، خواري ، جدوجهد

په کوښښ که څوک تر ځايه نه رسېږي

هر ســـړے تر ځايه نهٔ رسي بې کوشه (ا ، خ ، و)

**کوش** :-( کو + ش)(ف ، لاحقه) د فارسي لفظ دے ۔ځينو الفاظو سره د لاحقې په طور راځي۔لکه سخت کوش۔

**سختــــــ** :- (س + خ + ت)(ف تر ، صف ، مذ- ه) ســـخت کوښــــښ کوونکے ، ډېر زيات کوښښ کوونکے۔

**کوشالے** :- (کو + شا + لے ) (اس ، مذ ، جــــــلي)د کوناتيي هډوکے ، د کناتيي هډوکے۔

**کوشان** :- (کو + شا + ن)(ف ، صف ، مذ ، موــــــه) کوښښ کوونکے ، په کوښښ کښې لګيا ، په سعي کښې بوخت ، پيرندوئے ، هاند کوونکے۔

**کوشتوړے** :-( کو + ش + تو + ړے) (اس ، مـــذ ، جــــــــــړي) وړه هندوانه چې په پاليز کښې وروستو پېدا شي۔کنچکه۔(عموماً ددې يو طرف خراب او سخا شوے وي)۔

**کوښښ/کوښــښ**:- (کـو + ش/شـې + ش) (ف ، اس ، مـذ ، جـــــــونـه) سعي، جدوجهد ، منډې ترنډې ، بېړ ، هاند ، کوړه ، خواري۔

**ــــــــکول** :- سعي کول ، جدوجهد کول ، د کوم دپاره منډې ترنډې وهل ، لاس و پښې وهل ، کوړل ، هاند کول۔

**کوشېر** :-( کو + شې + ر ) (اس ، مذ ، جــــــونه) پېوند ، خصوصاً هغه پېوند چې د دات (فلز) کوم مات ځاے په قلعي پېوند کړے شي۔ټانکه ،

**ــــــکول** :- پېوندول ، جوړ ور وستل ، ټانکه لګول۔

**کوښار** :-( کو + خا / شا + ر)(اس ، مذ ، جـــــــان) چيترګنډ ،پڼو پېزارونو ګنډلو واله چميار ، موچي۔

**کوښاره** :-(کو + خا / شا + رَ) (اس مو ، جـــــــرې) د ,,کوښار ،، تانيث دے۔

**کوښان** :-( کو + خا / شا + ن)(وـــــ کوشان)

**کوښت** :-( کو + خ / ش + ت) (اس ، مذ ، جـــــونه) (۱) د برستنې پلېټ يا قات (۲) د څادر جونګڼه۔يعني د څادر يو پيسکے مرۍ ته اچول او بل د ملا نه راتاوؤل۔په دې جونګڼه کښې وابنهٔ مابنهٔ د رېبلو سره سره جمع کوي

**کوښت** :-( ک + و + خ / ش + ت) (اس ، مذ ، جـــــونه) په غر کښې لوے او ژور (جور) چاود۔

**کوښت** :-( کو + خ / ش + ت)(اس ، مذ ، ج - ونه) ته ، تهه ، (د جامې) کت ، قط۔

**کوښته** :-( کو + خ / ش + تَ)(اس ، مو ، جـــــتې) خيابان ، چمن ، ګلزار

ځاے په ځاے کـرسۍ پرتې دي

رنګا رنـګ په کښې کوښتې دي (در مجالس)

**كوښښ** :- ( كو + خ / ش + خ / ش ) ( اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) كوښښ ، سعي ، لاس و پښې وهنه.

**كوښكه** :- ( كو + خ / ش + كَ )( اس ، مو ، ج ـــــ كې ) د كشتۍ يو داو دے چې د حريف پښه په خپله پښه ووهي.او وئې غورزوي.

**پهـــــوهل** :- په كُشتۍ كښې د حريف پښه په خپله پښه وهل.

**كوښكه** :- ( كو + خ / ش + كَ )( اس ، مو ، ج ـــــ كې ) هغه لرګے چې د ديوال په سوري كښې كلك وركړي.او بيا پرې څاروي وغيره تړي.

**كوښل** :- ( كو + خ / ش + ل ) ( مص ) ليكل ، كښل.

**كوښلے** :- ( كو + خ / ش + لے )( اس ، مف ، مذ ، ج ـــــ لي ) ليكلے ، ليكلے شوے ، په ليک كښې راوستے ، تحرير شوے.

**كوښلے** :- ( كو + خ / ش + لے )( صف ، اس ، مذ ـــــ لي ) ښكلے ، ښائسته ، زيبا ، حسن واله ، حسين.

**كوښه** :- ( كو + خَ / شَ )( اس ، مذ ، ج ـــــ ښې ) هغه كوږ لرګے چې د بار د پړي په سر وتړلے شي.او بيا پرې بار كلكولے شي.

**كوښه** :- ( كو + خَ / شَ )( اس ، مو ، ج ـــــ ښې ) د ښځو يو قسم پېزار

**كوښې** :- ( كو + خې / شې ) ( اس ، مو ) د ,, كوښه ،، جمع ده.

سپين نمري اغوسته په پښو سرې كوښې نوخطه

څـرنـــګې را درومي لـكـه تكه سپينه بطه (خوشحال)

**كوښېدل** :- ( كو + خې / شې + د + ل )( حمص ) غصه كول ، ګوابن كول ، په قهر كېدل.

**كوغ** :- ( كو + غ )( صف ، مذ ، مو ـــــ ه )(۱) كوږ ، خميده (۲) كوږے ، كوږے

**كوغ** :- ( كو / كُ + غ )( اس صوت ) هغه اواز چې په مرۍ د زور كولو نه پس راووزي.

**كوغالے** :- ( كو + غا + لے ) ( اس ، مذ ، ج ـــــ لي )(۱) ډوغل ، لويه قُتـه (۲) هغه وړوكے شان ډوغل ، كوم چې كچړې په مېنځ كښې د غوړو اچولو دپاره جوړولے شي.

**كوغالے** :- ( كو + غا + لے ) ( اس ، مذ ، ج ـــــ لي ) هغه خاورين مات شوے لوښے چې په كښې سپي ته اوبۀ ږدي.

**كوغالے** :- ( كو + غا + لے ) ( اس ، مذ ، ج ـــــ لي ) وړوكے شان كـور ، جونګړه.

**كوغلغل** :- ( كو + غا + ل + غ + ل ) ( اس صوت ) هغه اواز چې د تپوس يا د نورو غوښه خوړونكو مرغو د شړلو دپاره ايستے شي.

**كوغې** :- ( كو + غې ) د ,, كوغه ،، جمع ده.

**ـــــسترګې** :- په ښكته يا دننه ننوتې سترګې.

**كوف** :- ( كو / كُ + ف ) ( اس ، مذ ) چُف ، دم.

**كوفت** :- ( كو+ف+ت )( ف،اس،مذ،ج ـــــ ونه ) درد ، دوک ، تكليف ، غم ، ملال

**ذهنيـــــ** :- ( ذ + هـ + ني ـــــ ) ( ف تر ، اس ، مذ ) هغه دوک يا درد كوم چې بني ادم ذهني طور سره محسوسوي.

**كوفته** :- ( كو + ف + تَ )( ف ، اس ، مو ، ج ـــــ تې ) (۱) ټكېدلے ، ټكولے ، قيمه كړے ، وړژلے ، كوټلے ، وهلے شوے (۲) د قيمې غونډارے چې پياز مسالې وغيره په كښې ګډې وي.او لكه د غوښې پوخ شوے وي. (۳) ستومانه ، ستړے ، عموماً ,, خسته كوفته ،،

بلبلان خسته كـوفتـه خـزان زپلي

په سوچه اچه بوستان به هوسناک شي (حافظ)

(۴) د قيمې غونډارے چې په ښوروا يا تشو غوړو مسالو كښې پخه ولے شي.

**ـــــبخته** :- ( ـــــ بې + خ + ت ) ف تر ، صف ) ټكولے ، دل كړے او بيا چاڼ كړے ( د داروګانو په حقله وئيلے شي ).

**ـــــخاطر** :- ( ـــــ خا + ط + ر ) ( ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه ) هغه چې زړۀ كښې ټكولے شوي وي.په زړۀ خوږ ، خوږ زړے.

**كوفه** :- ( كو + فَ )( اس ، مع ) په عراق كښې د يو ښهر نوم.چې په اسلامي تاريخ كښې د خپلو سختو ناترسو او فسادي خلكو په وجه مشهور وۀ .د حضرت امام حسين رضي الله عنه قاتلان زياتره هم د دې ښهر وو .اوس وران او ويجاړ پروت دے.

**كوفي** :- ( كو + في ) (عف تر ، صف ) (۱) كوفې ښهر سره تعلق لرونكے. كوفې ته منسوب.(۲) د كوفې ښهر اوسېدونكے.

**ـــــخط** :- ( ـــــ خ + ط )( عف ، تر ، اس ، مذ ) د عربۍ پخوانۍ ليک دود ، پخواني قرأن شريفونه او ځينې كور ليكونه په همدغه خط كښې شوي دي.

**كوک** :- ( كو + ک )( اس ، مذ )كچه ګنډنه ، لوے لوے ټكونه.

**كوک** :- ( كو + ک )( اس ، مذ ) يو قسم غرئيز بوټے دے چې په ډېرو سختو ځايونو كښې پيدا كېږي.

**كوک** :- ( كو + ک ) ( اس ، مذ ) ( بل ) ځنګلي پياز ، پيازكے.

**كوک** :- ( كو + ک )( اس ، مذ ) غرئيز پياز ، پياز.

**كـوک** :- ( كـو + ک ) ( انګ ، اس ، مـذ ، ج ـــــ ونـه ) مشـهور مشـروب ، كوكاكوله ، يا پيپسي كوله.

**كـوک** :- ( كـو + ک )( اس ، مـذ ) (۱) د ساز شـورو كونـه .(۲) ګـړۍ لـه چـابي وركونه.

**كوک** :- ( كو + ک )( اس ، مذ ) هغه ګډ چې ځائي غوړونه نۀ لري.

**كوک** :- ( كو + ک )( ف ، اس ، مذ )(۱) لويه او تېره چغه ، كريكه (۲) چغه.

**دـــــسكارۀ** :- ( د ـــــ س + كا + ر ) د سكرو يو قسم دے .چې د كول نه تيارولے شي.دا لوګے نۀ كوي.( د كوک ، كول سره هم هغه تعلق دے كوم چې د عامو سكرو لرګي سره دے ).

**كوكا** :- ( كو + كا ) اس ، مذ ) وړوكي هلک يا ماشوم ته د مينې يو لفظ ، ككے.

**كوكا** :- ( كو + كا )( اس ، مذ ، ج ـــــ ګان )(۱) د ,, كاكا ،، هم معني لفظ دے چې ترۀ ته هم وائي.او د عزت دپاره هر مشر سړي ته هم وائي. (۲) د تيم نه جوړه شوے دكانچه چې په كښې د وړو ځيزونه خرڅولے شي.

**كوكار** :- ( كو + كا + ر )( اس ، مذ ) چغه ، فرياد ، ژړا انګولا.

**كوكاره** :- ( كو + كا + ر )( اس ، مو ، ج ـــــ رې )كريكه ، چغه ، اوږده چغه ، فرياد غوغا.

**كوكارې** :- ( كو + كا + رې ) (۱) د ,, كوكاره ،، جمع ده. (۲) د ,, كوكـار ،، اضافي او مجروري وغيره ( متغير ) شكل دے

**ـــــكول** :- ( و ـــــ كاكورې وهل ).

**ـــــوهل** :- چغې وهل ، كريكې وهل ، فرياد كول ، شور غوغا كول.

**كوكاڼے** :- ( كو + كا + ن + ړے ) ( اس مع ) د يو ستوري نوم دے.

**كوكب** :- ( كو + ک + ب ) ( ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ كواكب ) ستورے.

**ـــــدان** :- ( ـــــ دا + ن ) ( اس ، صف ) د ستورو علم لرونكے

چې كـوكب مې يـاري نۀ كا

په دا څۀ كه كوكب دان شوم (خ ، خ ، خ)

**كوكبي** :- ( كو + ک + بي ) (صف )كوكب ( ستوري ) سره تعلق لـرونكے كوكب ته منسوب.

**ـــــمواصلات** :- ( ـــــ م + وا + ص + لا + ت ) (عـف تـر ، اس ، ج ) هغـه

مواصلات کوم چې د یو کوکب (سپټلائټ) په ذریعه انجام مومي.

**کوکر** :- ( کو + ک + ر )(صف ، مذ ) مضبوط ، مضبوطې تنې واله.

**کوکره** :- ( کو + ک + رَ )(اس ، مو ، ج ـــــ رې) هغه لرګي چې اوښ د پالان د ګنډ په مېنځ کښې ورکړې شوې وي.

**کوکره** :- ( کو + ک + رَ )(اس ، مو ، ج ـــــ رې ) د سترګو یو مرض.

**کوکرې** :- ( کو + ک + رې ) د „ کوکره ،، جمع ده. د سترګو د مرض جراثیم ، د سترګو خوږ.

**ـــــ ماتول** :- د سترګو جراثیم پټکرې وغیره سره ختمول.

**په سترګو کښې ـــــ کېدل** :- د خاص قسم جراثیمو په وجه سترګې خوږېدل.

**کوکرے** :- ( کو + ک + رے )(اس ، مذ ، ج ـــــ ي) وښے ، د سرو یا د سپینو کالے چې زنانه ئې په لاسونو یا پښو کښې اچوي.

**کوکرے**:- ( کو + ک + رے )(اس ، مذ ، ج ـــــ ري ) یو قسم مرغۍ چې دملاچرګک په شان وي. او عموماً په دشتونو کښې وي.

**کوکرے** :- ( کو + ک + رے ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ري ) کوترے ، د سپي ورو کے بچے.

**کوکړ** :- ( کو + ک + ړ )(اس ، جم ) د مشنګو یو قسم - چې دانې ئې د عامو مشنګو لږې وړې وي.

**کوکړ** :- ( کو + ک + ړ ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) اوږد لرګے ، چې د کوغالي اور پرې لړلے شي. لوے اور لړونے.

**کوکړۍ** :- ( کو + ک + ړ + ۍ ) (اس ، مو ) د ګل پتنګ ، کمبلۍ.

**کوکړے** :- ( کو + ک + ړے ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ي) هغه پتیره ډوډۍ چې په کاڼي پخولے شي.

**کوکړے** :- ( کو + ک + ړے )(اس ، جم (۱) د نمدې جۍ (ژۍ) چې تاو کړے (غبنتلے شوے) نۀ وي. (۲) هغه وهلے شوې نرمه او رنګینه وړۍ چې په نمده باندې ګلونه پرې جوړولے شي.

**کوک شاستر** :- ( کو/کو + ک +شا +س + ت +ر) ( اس ، مع ) د یو کتاب (یا د کتابونو) نوم چې په کښې د ښځو قسمونه او ښځو سره د کوروالي طور طریقې ښودلې شوي دي - دا کتاب د هندوانو یو پنډت „کوکا ،، لیکلے دے.

**کوکل** :- ( کو + ک + ل )(اس ، جم ) وابنۀ ، چې په سوري کښې زرغون شي لکه:- که یو سړي له یوه سړي سره بیع سلم وکړه په کوکلو کښې ، که دا سړے ئې صفتونه مقرر نه کا ، روا نه ده. (فتاوه ئې احمد شاهي) (زړه پانګه)

**کوکله** :- ( کو + ک + لَ ) (اس ، مو ، ج ـــــ لې ) مشهوره مرغۍ ، ملاچرګک ، الېګډے.

**کوکله** :- ( کو + ک + لَ )(صف ) ټنډ شوے - هغه سړے چې د یخنۍ له کبله راغونډ شوے وي.

**ـــــ کول** :- ( یخنۍ ) راغونډول ، راټنډول.

**ـــــ کېدل** :- د سختې یخنۍ له کبله راغونډېدل.

**کوکنار** :- ( کو + ک + نا + ر ) (ف ، اس ، مذ ) ډوډه ، لاډو د کاشکاشو پوستکے ، چې د دارو په طور استعمالېږي.

**کوکنه** :- ( کو + ک + نَ )(اس ، مو ، ج ـــــ نې ) (۱) ګلدان ، د ګلونو د کښېښودلو ښکلے ، لوښے (۲) تاروګے (۳) ګل ، مجازاً معشوقه

ډوب ډوب لاړم ستا په غم زما کوکنې

لاتر کومه نه مې ولې د زړۀ سکنې (حسین)

**کوکنه** :- ( کو + ک + نَ )(اس ، مو ) د ګلونو پتنګ ، ناره کۍ ، کمبلۍ.

**کوکنۍ** :- ( کو + ک + ن + ۍ )(اس ، مو ) ګلدانۍ ، ګلدان.

**کوکو** :- ( کو + کو )(اس ، صوت ) د ماشومانو ژړا فریاد.

**کوکو** :- ( کو + کو ) (اس ، صوت ) د ګوګوشتکے اواز.

**ـــــ وهل** :- د کوکو نعرې وهل ، د ګوګوشتکے اوازونه کول.

**کوکو** :- ( کو + کو ) (اس ، مذ ) ګل.

**کوکو** :- ( کو + کو ) (صف )ښکلے ، ښائسته (د ماشومانو په ژبه (جبه کښې ) ، وا وا.

**ـــــ دادا** :-( د ماشومانو ژبه / جبه ) ښکلے لالا.

**کوکوبه** :- ( کو + کو + بَ ) (و ـــــ کوکوبے).

**کوکوبے** :- ( کو + کو + بے ) (پ تر ، اس ، جم ) د ګلابو اوبۀ ، عرق ګلاب.

**کوکوپښ** :- ( کو + کو + پ + خ / ش ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ان ) ملاچرګک ، الیګړے.

**کوکوړے** :- ( کو + کو + ړے )(و ـــــ ککوړے )

تول دې مه شه په زرګونو درویم

چې تۀ یو کوکوړے خورې په کښې یا نیم (حمید)

**کوکوړے** :- ( کو + کو + ړے ) (و ـــــ کوکړے )

**کوکوشتکه**:- (کو + کو + ش + ت + کَ ) (اس ، مو ، ج ـــــ کې )ګوګوشتکه ، فاخته.

**کوکول** :- ( کو + کو + و + ل )(مص )کړول ، متوجه کول.

**کوکو لالا** :- ( کو + کو + لا+لا ) (اس ، مذ ) د مشر ورور لقب ، لالا.

**کوکومبو** :- ( کو + کو + م + بو ) (اس ، مذ ) ګونګے ، کونګ ، کونګه.

**کوکومرغه**:- (کو + کو + م + ر + غَ ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ان ) ګوګوشتکه ، فاخته.

**کوکو واوا** :- (کو + کو + وا + وا ) (صف) ښائسته ، ښکلے رنګینه ، (د ماشومانو په جبه / ژبه ).

**کوکه** :- ( کو + کَ ) (اس ، مو ، ج ـــــ کې ) د تسپو (تسبیح ) یو قسم.

**کوکه** :- ( کو + کَ )(اس مو ، ج ـــــ کې ) هغه صندوق چې په کښې مېوې وړې شي. کرېټ.

**کوکه**:- (کو + کَ )(اس ، مو ، ج ـــــ کې ) خالي کالتوس ، تش کالتوس ، توکه

**کوکه** :- (کو + کَ )(اس ، مو )د آلوګانو یو قسم دے.

**کوکه** :- ( کو + کَ )(اس ، مو ، ج ـــــ کې ) بوسه ، چومه ، پپه ، چپې.

**کوکې**:- (کو + کې )(اس ، ج ) د „ کوکه ،، جمع ده. نارې ، فریاد ، چغې سورې

**ـــــ کول** :- فریاد کول.

یاره که مئین ئې له جفا ئې کوکې مه کړه

دا د عاشق حال دے سر ئې دار لره وردومي (خواجه محمد )

**کوکې** :- (کو + کې )(اس ، ج ) د „ کوکه ،، جمع ده. شهرت ، نوم خورېدنه ، مشهوري.

**ـــــ تلل** :- شهرت کېدل ، نوم خورېدل ، مشهورېدل.

**کوکۍ** :- ( کو + ک + ۍ )(اس ، مو ) بوسه ، چومه ، پپه.

**ـــــ اخېستل** :- بوسه اخېستل ، چومل ، پپه اخېستل ، چپې کول.

**ـــــ ورکول** :- بوسه ورکول ، پپه ورکول.

که یو خوږه کوکۍ دې راکړه

خلک طوطیانو له شکرې ورکوینه (ټپه)

**کوکۍ** :- ( کو + ک + ۍ ) (کلمه ) ماشوم یا وړوکي ته د مینې په ډول د اواز کولو یا مخاطب کولو په وخت وایۀ شي. لکه :- کوکۍ ! دلې راشه.

**کوکۍ** :- ( کو + ک + ۍ ) (اس ، مو ) د ماشوم خولۀ.

**کوکی** :-( کو +ک +ی ) (اس ، مو ) د ائینې ماته ټکړه.

**کوکی** :-( کو +ک +ی ) (اس مذ ، ج ) ګلونه.

**کوکی** :-( کو +ک +ی ) (اس ، مو ) د ګل پروانه ، کمبلۍ.

**کوکی** :-( کو +ک +ی ) (اس ، مو ) یو غرئیزه ونه ده .چې ډېر لوړو او سختو ځایونو کښې کېږي.

**ــــــګوته** :-( ـــګ / ګو + ت ) (پ تر ، اس ، مو ) لاکو ګوته ، لکړه ګوته ، مسواکۍ ګوته ، د شهادت ګوته.

**ــــــوله** :-( ـــــؤ + ل ) (اس ، مو ، ج ـــــلې ) د ولې یو قسم دے .د ګلونو وله.

**کوکی** :-( کو +ک +ی ) (اس ، مو ) غنې ، غونډل ، توره غنه ، جولا.

**کوکے** :-(کو + کے )(جدران ) (اس ، مذ ، ج ـــــ کي ) غټ جولا ، لوے عنکبوت

**کوکے** :-( ک + و + کے )(اس ، مذ ، ج ـــــ کي ) د اوسپنې یوه اله ده چې خمیر پرې تراشلے شي.کوولے ، کویونے.

**کوکے** :-( کو + کے ) (اس ، مذ ، ج ـــــ کي )کف ګیر ، د دیګ څمڅۍ.

**کوکے** :-( کو + کے ) (اس ، مذ )ګندنا ، اوږکے ، اړکی.

**کوکے پوکے** :-( کو + کے + پو + کے )(صف) لړ څه ، لړ غونډې او بې اعتباره.

**ـــــــکول** :- زارۍ کول ، د عاجزۍ اظهار کول ، تورې تپې کول.

**کوکیالے** :-( کو + ک + یا + لے ) (صف ، مذ ، مو ـــــــ ی ) ګلدار ټوکے ، ګلونو واله کپړه.

**کوکیالے** :-( کو + ک + یا + لے ) (صف ، مذ ، مو ـــــ لۍ ) مشهور ، چې کوکے ئې تر لرې لرې پورې تلې وي.

**کوکیانه** :-(کو+ک+یا+نَ)(اس، مو ، ج ـــــ نې ) د ګلونو باغ ، ګلستان ، ګلزار

**کوکیځ** :-(کو + کي + (د ) ز ) (صف ، مذ ،مو ــــــ څه ) کړلیچے ،کړلیچ لرونکے ، کوږ ووږ بې تناسبه (زمکه وغېره ).

**کوکېدل** :-( کو + کې + د + ل ) (مص ) کړېدل ، متوجه کېدل ، لکه ټولې سترګې ، د دوي پلو ته کوکې شوې دي.

**کوکین** :-( کو + کي + ن ) (و ــــــ کوکائین )

**کوګ** :-( کو + ګ )(و ـــــ کوږ ).

**کوګل** :-( کو + ګ / ګَ + ل ) (اس ، مذ ، ج ـــــــ ونه ) ګوګل ، د سینې صندوق

**کوګل** :-( ک + و + ګ + ل ) (و ـــــ کوږل )

**کوګیر** :-( ک + و + ګي + ر ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه )کفګیر ، کوکي.

**کول** :-( ک + و + ل ) (مص ) په سر اودرېدل ، سر لاندې په زمکه وغېره او پښې پورته اسمان طرف ته کول.

**کول** :-( ک + و + ل ) (مص )(۱) کار وغېره سرته رسول ، په عمل کښې راوستل.(ف : کردن ) (۲) شغل لرل ، لکه نن صبا څۀ کوې؟ (۳) خاوند جوړول.لکه زۀ فلانے نۀ کوم. (۴) بښځه جوړول.لکه زړه بښځه ئې وکړه. (۵) حل کول ، لکه : ما ایله څلور سوالونه وکړل.(۶) سر جوړول ، سر کول

(۷) زیاتول ، ور اوړدول لکه عزت کول ، نفرت (۸) مجامعـــت کـــول، کوروالے کول (۹) اغوستل

چې ئې قصد د ګزار نۀ وي

هغه نـــۀ کـا زغـره خـود (خوشحال )

(۱۰) پیدا کول لکه : بوي ئې کړے دے. (۱۱) ربېل لکــه : وابښــۀ ئــې کړي دي!

**ـــــــــپه چا** :- چاسره بد کول ، چا ته نقصان رسول ،مه کوه په چا چې ونۀ شي په تا ! (متل )

**جاروـــــ** :- (جا + رو ـــــ ) (۱) صفائي کول ، ځاے صفا کول (۲) هر څۀ ځان ته را جمع کول ، هر څۀ اخستل.

**سرـــــ** :- (س + ر ـــــ ) فتح کول ، برے موندل په کوم کار یه مهم کښې.

**سروپښې ـــــ** :- (س = رو + پ +خ/ شې ـــ ) نخرې کول ، انې بانې کول

**کارـــــ** :- (۱) په کار کښې مصروفېدل (۲) کار سرته رسول (۳) ضرورت پوره کول لکه : تۀ زما یو کار وکړه.

**کور جاروـــــ (دچا)** د چا د کور نه هر څۀ (مال دولت اسباب وغېره ) وړل. د چا د کور نه د ملا مُلا جماعت جوړول.

**لاسـ ـــــ** :- (لا + س ـــــ ) امداد کول ، مدد کول.

**کول** :-( ک + و + ل ) (اس ، مذ ) زهر.

**کول** :-( ک + و + ل ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) (۱) هم عمر ، د یو عمر ، هم سن (۲) ټبر و خاندان

چې پـه تور د لـبوتـتوب مې هر سړے په زولنو شه

ګرم ئې مه ګنئ اے خلکو هم هغه زما د کول دے (خوشحال )

**کول** :-( کو + ل )(هـ ، اس ) غار

سترګې دې هـر ګوره برابرې دې په تول کښې

مسته ماتول کا لکه سپین مزرے په کول کښې (خواجه محمد بنګش )

**کولاخ** :-( کو + لا+ (ت ) س ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) قلاچ ، وازه.

**کولاک** :-( کو + لا+ ک )(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) سیلۍ ، جګړ.

**کولاک** :-( کو + لا+ ک ) (اس ، مذ ) (۱) د اوبو چپه (۲) د اوبو ځوښ وهنه.

**کولپ** :-( کو + ل + پ )(ک + و + ل + پ ) د ,, قفل ،، بدل شکل دے .(و ـــــ قفل یا کلف ).

**کولپک** :-( کو + ل + پ + ک ) (صف ، مذ ، ج ـــــ ه ) قفل لګېدلے ، جرندې واله.لکه کولپکه دروازه.

**کولپکے** :-( کو + ل + پ + کے ) (اس ، مذ ، ج ـــــ کي )د لستوني کف یا کف واله لستونے.

**کولپول** :-( کو + ل + پ + و + ل ) (مص مت ) کلپ لګول ، جرنده ور اچول ، قفل لګول ، جندره کول.

**کولپۍ** :-( کو + ل + پ + ی )(اس ، مو ) د اغړلو اوړو د کښېښنودو خاص قسم خاورین لوښے ، کاشین ، (اوس مسین هم جوړېږي )

**ـــــــــــخولۀ** :-( ـــــخ + ل ) (پ تر ، صف) د کلپـۍ پــه شــان خولــۀ ، پرسېدلې

مرور سړي ته طنزاً یا توبیخاً وئیلے شي. څۀ کولپۍ خولۀ دې نیولې ده . یا خولۀ دې کولپۍ کړې ده.

**کولپے** :-( کو + ل + پے )(اس ، مذ )(۱) کولپۍ ، د اغړلو اوړو د کښېښنودلو خاورین لوښے.(اوس مسین هم جوړولے شي ) (۲) خولۀ بند لوښے

د راز و نیاز مــه بــاسه

د دې خپل زړۀ له کولپے (ارزاني )

**کولپے** :-( کو + ل + پے )(اس ، مذ ، ج ـــــ پي ) د یو قسم ګنډ نوم دے.

**کولر** :-( کو + ل + ر ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) یخوونکے ، هغه اله چې د اوبو او د پکي په ذریعه کوټه یخوي. (روم کولر ).

**کولـک** :-( کـو + ل + ک )(اس ، مـذ ، ج ـــــــ ونـه ) (۱) پـه چت کښې هغه سورے چې رڼا ترې کوټې ته راځي.(۲) په چت کښې هغه سورے د کوم په ذریعه چې لوګے بهر ته ووزي.مګ (دا عموماً د کوټې د نغرې دپاسه

جوړولے شي) دریڅه.
**کولک** :-( کو +ل+ک) (اس ، مذ ، کړکۍ ، دریچه.
**کولک** :-( کو +ل/ل+ک) (اس ، مذ ، ج ــونه/ان) د سترګې کاسه ، هغه حلقه چې سترګه په کښې ځاے شوے وي.
**کولګی** :-( کو +ل+ګ+ی) (اس ، مو) د یو بوټي نوم دے چې د ازغو (اغزو) په مینځ کښې پیدا کیږي. وړې وړې خوږې دانې لري. تار ئې نرے وي.
**کولمبو** :-( کو +ل+م+بو) (اس ، مع) د سري لنکا (سیلون) د جزیرې دارالحکومت.
**کولمبیا** :-( کو +ل+م+بي+یا) (اس ، مع) د یو ملک نوم -چې دارلحکومت ئې ,, بوګوټا ،، نبهر دے.
**کولمه** :-( کو +ل+مَ) (و ـــ کوړمه)
**کولمه** :-( کو/ک+ل+مَ) (اس ، مو ، ج ــــ مې) کلمه ، روده.
ــــــ**غُټه کېدل (دچا سره)** :- کلک تړون لرل. کلکه دوستي لرل. چې د یو بل نه نۀ جدا کیږي.
ــــــ**غوټه کول، چا سره** :- چا سره کلک تړون لرل. چا سره نۀ بیلیدونکے تعلق یا دوستي وغیره لرل.
ــــ**کچور** :-( ــــ ک+چُو+ر)
ــــ**توئے** :-( ــــ تو+ئے) (پ تر ، اس) جګرخون ، ځیګرخون.
**غوړه** ـــ :-( غ+و+ړَ ـــ)
**ډکه** ـــ :-( ډ+کَ ـــ)
**پچه** ـــ :-( پ+چَ ـــ) (په تر ، اس ، مو) د ګډانو کلمه (قلمه) چې د وریژو (وریجو) او غوښې (قیمې) وغیره نه ډکه کړي. او وچه ئې کړي. یا ئې تازه پخوي.
**کولنج** :-( کو +ل+ن+ج) (و ـــ قولنج)
**کولنډ** :-( کو +ل+ن+ډ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) (۱) هغه لرګینه حلقه چې د غواو غوایانو یا د سپو غاړې ته اچوي. چې ونۀ تښتي. (۲) هغه لرګے چې غوایان وغیره پرې تربیه کولے شي. کړنګ
عمر هسې کړ هجران راباندې لنډ
لکه پرېوزي د چا غاړې ته کولنډ (حمید)
**کولنډے** :-( کو +ل+ن+ډے) (و ـــ کولنډ)
**کولوار** :-( کو +ل+وا+ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه کڅوړه چې په کښې د خطونو او پیغامونو وغیره کاغذونه ړدي.
**کولول** :-( کو +ل+و+ل) (مص) غونډ څیز تادول. لکه: هندوانه کولول.
**کولول** :-( کو +ل+و+ل) (مص) څۀ څیز راپړسول او راپورته کول. لکه چې د تیزابو په اچولو وپړسیږي او بوربوړکی وکړي.
**کولولو** :-( کو +لو+لو) (اس ، مذ ، ج ــ ګان) یو قسم حشره ده -خړ رنګې چې په پسته شګه کښې مخروطي شان سورے وکړي او په کښې اوسي.
**کولولے** :-( کو +ل+و+لے) (اس مف ، مذ ، مو ــــ لي) (د غونډ شکل واله څیز) تاو کړے چکر ورکړے.
**کولولے** :-( کو +ل+و+لے) (اس ، مف ، مذ ، ج ــ لي) (د تیزابو په ور اړلو) راپړسولے او په بوړ بوړکو کړے.
**کولون** :-( کو +لو+ن) (انګ ، اس ، جم) خوشبویه اوبۀ ، د ګلابو اوبۀ.
**کولوټه** :-( کو +لو+ن+ټَ) (اس ، مو ، ج ــــ ټې) د دام فالتو برخه ، د دام د مزي سر.
**کولونه** :-( کو +ل+و+نَ) (حمص) د غونډ شان څیز تاوونه.

**کولونه** :-( کو +ل+و+نَ) (حمص) د کوم څیز راپړسونه او بوربوړکی تړې پیدا کونه ، (لکه د تیزابو د عمل په شان).
**کوله** :-( ک+و +لَ) (اس ، مو ، ج ــــ لې) خاورین لوښے چې د نغرې په شان جوړ کړي. او د اوبۀ پچې په کښې واچوي. رو رو اور ولګوي.
**کوله** :-( ک+و +لَ) (اس ، مو) د غوبل کولو په وخت د غنمو وغیره ګېډۍ د غوبل غوایانو مخکښې خورول ، پخل.
**کوله** :-( کو +لَ) (اس ، مو ، ج ــــ لې) کوئله ، سکارۀ.
**کوله** :-( کو +لَ) (اس ، مو ، ج) خالي کالتوس ، تش کالتوس ، توکه.
**کوله** :-(کو +لَ) (اس ، مو ، ج ــــ لې) کلاه ، د سر خاص قسم ټوپۍ چې څوکه ئې وتې وي.
**کوله** :-( کو +لَ) (اس ، مو ، ج ــــ لې) د سپې اوږده چغه ، د سپي ژړا (جړا)
**کوله بوله** :-( کو +لَ+بو+لَ) (اس ، مذ ، ج) الفاظ دي چې د کوښنې او غمخورۍ په معنا استعمالولے شي.
**کولی** :-( کو +ل+ی) (اس ، مو) په غرۀ کښې نرۍ او سخته لار چې تېرېدل په کښې ډېر ګران وي.
**کولے** :-(کو +لے) (اس، مذ ، ج ــــ لي) (۱) خاورین (د ختو جوړ) کندو (۲) خته
**کولے** -( کو +لے) (اس ، مذ ، ج ــــ لي) وړوکے راشبیل. لرګین بیل چې واوره پرې پاکوي.
**کولے** :-( کو +لے) (صف ، مذ) هغه چې په مخ ئې د دانو نخښې وي کوجنس ، کورکورے.
**کولیاړ** :-( کو +ل+یا+ړ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د غرئیزو ونو یو قسم (په پسرلي کښې سپین ګلونه کوي او د ګلونو غوټۍ ئې د سابو په توګه پخولے هم شي).
**کولېدل** :-( کو +لې+د+ل) (مص) د غونډ مونډ څیز تاوېدل. یا چورلېدل
**کولېدل** :-( کو +لې+د+ل) (مص) پړسېدل او راپورته کېدل. لکه د تیزابو په اچولو سره دغه ځاے جوش وکړي ، بوربوړکی شان وکړي او په پورته را وړپړسېږي.
**کولېدنه** :-( کو +لې+د+نَ) (حمص) (د غونډ څیز) چورلېدنه ، تاوېدنه.
**کولېدنه** :-( کو +لې+د+نَ) (حمص) راپړسېدنه او را پورته کېدنه. (لکه څرنګ چې د تیزابو په اچولو دغه ځاے جوش وخوري بوربوړکی وکړي او په پورته راوپړسېږي.)
**کولېدونکے** :-( کو +لې+دو+ن+کے) (اس ، فا ، مذ ، ج ــ کي) چورلېدونکے ، تاوېدونکے (غونډ څیز).
**کولېدۀ** :-( کو +لې+دۀ) (و ـــ کولېدنه).
**کولبر** :-( کو +لې+ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱۹ طوق ، بند ، کولنډ ، قېد ،
ترګناه به تېر دلبر شي
بند د کفر په کولبر شي (شرعت الاسلام زړه پانګه)
(۲) زُنار
ــــ**کېدل** :- قېد خانه کېدل ، قفس کېدل
د بندي طوطي په دود به ناري وکړي
چې کردستان توره تیارۀ لحد کولبر شي
**کولبغه** :-( کو +لې+غَ) (اس ، مو ، ج ــــ غې) خشاک ، د اور بلولو څیز
دروغ د دوزخ اور دے
دروغګوئے ئې کولبغه شي (ارزاني)

**کوماچ**: -( کو +ما +چ)(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) د پتيره ډوډۍ لوے ټُوک (۲) هغه ډوډۍ چې په تنور کښې پرې ووزي.او وچه کلکه شي.

**کوماچ**: -( کو +ما +چ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) هغه وړه ډوډۍ چې د وريجو نه پخه ولے شي.ورجينه.

**کوماچ**: -( کو +ما +چ)(اس ، مذ) لرے چې (صفا کړې) کلمې ترې چاپېره کړي.او په شگه کښې پوخ کړے شي.گوړماچ.

**کوماله**: -( کو +ما +لَ) (اس ، مو ، ج ـــــ لې) يو غرئيز بوټے دے چې ډېر بنۀ خوند لري.

**کوماله**: -( کو +ما +لَ) (اس ، مو) يو قسم گياه ده چې څاروو له ورکولے شي.څاروي پرې څرېږي.

**کوماندان**: -( کو +ما +ن+دا +ن) (انگ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان) حکم چلوونکے ، اٰمر ، د فوځ لوے افسر.

**کومبار**: -( کو +م+با +ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) کلال ، خاورين لوښي جوړوونکے.

**کومباري**: -( کو +م+با +ري)(اس ، مو) کلال توب.

**کومباړ**: -( کو +م+با +ړ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) (قندهار) کُـــــلال ، خاورين لوښي جوړوونکے.

**کومباړه**: -( کو +م+با +ړَ)(اس مو ، ج ـــ ړې) د ,, کومباړ ،، تانيث دے . کلاله.

**کومبړ**: -( کو +م+ب+ړ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) په جامه وغېره کښې لوے سورے.(۲) (لوے) زخم.

**کومره**: -( کو +م+رَ)(اس ، مو ، ج ـــــ رې) غله ده چې پخولے شي.کور ، بده اوښ.

**کومړ**: -( کو +م+ړ) (و ـــــ کومبړ)

**کومړۍ**: -( کو +م+ړ+ۍ) (اس ، مو) د يو بوټي يو وړوکے شان غونډ ازغن (اغزن) غونډارے.چې اکثره د گټ په وړۍ کښې وښلي.

**کومک**: -( کو /کُ +م+ک)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) امداد ، مرسته ، مدد ، پره ، طرفداري ، ملاتړ.

**کومېک**: -( کو +مې+ک) (انگ ، اس ، صف)مسخره ، خندني ، خندوونکے

**کومکۍ**: -(کو+م+ک+ۍ) (اس ، مو) کوړ کوړۍ ، کوړ کوړه ، گوگوشتکه ، فاخته.

**کومکي**: -( کو +م+کي) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) امداد کوونکے.

**کومن**: -( کو +م+ن) (صف ، مذ ، مو ـــ ه)کړمن ، غمجن ، بې چاره ، په بد حال.

**کومڼ**: -( کو +م+ڼ) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) مړاوے ، گنده او سخا شوے چې په (بوټو موټو) کښې پيدا کېږي.

**کومڼتيا**: -( کو +م+ڼ+ت+يا) (اس ، مو) مړاوے کېدنه ، مړاوے والے ، گنده والے ، سخا والے.

**کومول**: -( کو /کُ +مو+ل) (اس ، مذ ، ج ـــــ ان) يو مارغۀ دے ، لق لق يا لگ لگ ، چې لکه د زانې اوږده مرۍ لري.

**کومول**: -( ک /کو /کُو /کُ +م) د ,, کوم ،، تانيث دے .د تپوس او د پوښتنې تورے دے.

**کومه**: -(ک +و+مَ)(فعل) د ,, کول ،، مصدر نه د حال (واحد متکلم) فعل دے.

**کومه**: -( کو +مَ)(فعل) د ,, کۀمه ،، بدل شکل دے.

**کومه**: -( کو +مَ)(اس ، مو)(و ـــــ کومے)

**کومې**: -( کو +مې) (۱) د ,, کومې ،، جمع (۲) د ,, کومې ،، اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل.

مـــالاحـرف نـه وو لـه ياره بدل کړے
د سحر خروس دې وويشت شي په کومې (علي خان)

**د زړۀ له ـــــ نه / څخه**: -د زړۀ د جورو (ژورو) څخه.مجازاً د زړۀ د اخلاصه.

**د سمندر په ـــــ کښې**: -د سمندر په تل کښې ، د سمندر په ژورو (جورو) کښې.

**کومې**: -(ک /کو /کُو /کُ +مې) (۱) د ,, کومه ،، جمع ده.(۲) د ,, کومه ،، مجروري (متغير) حالت.

**د /له ـــــ**: -(د /ل ـــــ) (پ تر ، ظر) د کوم ځايه ، دکوم ځاے نه لکه: فلانيه ! ته دکومې راپېښ شوے.

**کومے**: -( کو +مے) (اس ، مذ ، ج ـــــ مي)(۱) د وروستنے سر .د کوم ځاے نه چې مرۍ شورو (شروع) کېږي.حلق غاړه (تيراه واله) (۲) مجازاً ۳تل ، وېخ.

**د روح ـــ لړزېدل**: -د روح مرکز لړزېدل.ډېر زيات متاثره کېدل.لکه: دې خبر خو زما د زړۀ کومے ولړزاوۀ.

**کومے**: -( کو +مے) (اس ، مذ ، ج ـــــ مي) د نغري په مېنځ کښې هغه کوغالے په کوم کښې چې سکارۀ جمع کېږي.

**کومے**: -( کو +مے) (اس ، مذ ، ج ـــــ مي) د غواے يا د اوښ کوهان

**کوميک**: -( کو +مي+ک) (و ـــ کامک / کومک)

**ـــــ ليکونکے**: -(ـــــ لي+کو+ن+کے)(انگ پ تر،اس ،ما،مذ ، ج ـــ کي) د مسخري او خندوونکي ډرامې وغېره ليکونکے.

**کومېنټري**: -( کو +م+ن+ټ+ري) (و ـــ کمنټري)

**کون**: -( کو +ن) (ع ، اس ، مذ) کېدنه ، پېداکېدنه

بې د ستا د مخه کون دے که مکان دے
بنــه تــوبنــه مې نۀ پــه دې شي نۀ په دا (رحمان بابا)

**ـــــ و فساد**: -(ـــــ (نو) ف+سا +د) (عف تر ، اس ، مذ) پېدا کېدنه او تباه کېدنه ، جوړېدنه او ورانېدنه.

**ـــــ و مکان**: -(ـــــ (نو) م+کا +ن)(عف ، تر ، اس ، مذ) کائنات، درسته دنيا ، اسمانونه او زمکه.

**دوه ـــــ**: -دواړه جهانه ، دا دنيا او د مرگ نه پس ژوند.

ن نبيان خداے راستولي
پــه دوه کــونــه نازولي (حافظ)

**کون**: -( کو +ن) (ف ، اس ، مذ) کُنه ، سمبې ، غره و ډره ، مقعد ، دُبر

**ـــــ خو**: -(ـــ خ +ر)(ف ، تر ، صف)د خر کُنه ، مجازاً احمق ، خر ، بې تميزه.

**کوناټ**: -( کو /کُ +نا +ټ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) د اگۍ يا د کوزې وغېره لاندينۍ حصه ، ويخ ، کنه (۲) د ,,کناټے ،، مکبر دے .لوے کناټے (۳) لويو لويو کوناټو واله ، کناټور.

**کوناټي**: -( کو/کُ +نا +ټي) (پ تر ، اس ، مذ ، ج) (۱) د ,, کوناټے ،، جمع ده (۲) د ,, کوناټے ،، اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل.

**ـــــ لگول**: - (مص) مجازاً کښېناستل ، کُنه لگول.

**کوناغ**: -(کو+نا +غ)(اس ، مذ) لاوڼ ، اينگولے ، نگولے ، کتغ ، سالن ، سالن.

**کونتاله**: -( کو +نا +لَ)(اس ، مو ، ج ـــــ لې) کونتۍ ، لښته چې سر ئې رامات شوي وي.

**کونتر**: -( کو +ن+ت+ر) (اس ، مذ ، ج ـــــ ان)د ,, کونتره ،، مذکر

دے .د خاص صورت نه علاوه ، د نر ښځې دواړو دپاره د ,, کونتره ،، (ج : کونترې) لفظ استعمالېږي.کوتر ، مشهور مارغهٔ.

**ـــــباز :-** (ـــــبا + ز) (پ تر ، صف ، مذ ، ج ـــــه) هغه کس چې کونترې ساتي او په سېلونو کښې ئې الوزوي.

**ـــــبازي :-** (ـــبا + زي)(پ تر ، اس ، مو) د کونترو ساتنه ، د کوترو د ساتلو کار او شوق .کبوتر بازی ، په سېلونو کښې په مقابله کونترې الوزونه.

**کونتره :-** (کو + ن + ت + رَ)(اس ، مو ، ج ـــــرې) د ,,کونتر،، مونث دے . ماده کونتر کوتره ، مشهوره کورنۍ مرغۍ .(په پښتو کښې د نر ښځې د تميز نه بغېر عموماً د ,, کونتره ،، لفظ استعمالېږي .لکه :- کونترې ساتل

**کونتون :-** ( کو + ن + تو + ن ) (و ـــــ کنډتون ).

**کونتې :-** ( کو /کُ + ن + تے ) (اس ، مذ ، ج ـــــتي ) هغه ديوال چې ويخ ئې ښوره شوے وي.او کمزورے شوے وي.

**ـــــکېدل :-** د ديوال ويخ د ښورې په وجه کمزورے کېدل.

**کونتي :-** ( کو + ن + تي )(صف) راکوږ شوے ، د کونتۍ د سر په شان کوږ شوے.راټول شوے (لکه د ډېرې يخنۍ له کبله ).

**ـــــشوے :-** راغونډ شوے ، راټنډ شوے ، راکوږ شوے ، رابرغ شوے .

**کونتۍ :-** ( کو + ن + ټ + ی )(اس ، مو) هغه لښته چې سر ئې راتاو شوے وي.چې دغه تاو شوے ځاے په لاس کښې نيولے شي.

**کونج :-** (کو /کُ + ن + ج)(اس ، مذ ، ج ـــونه) کنج ، گُټ ، گوټ ، گوښه ، گوشه.

**دسترگو په ـــــ کتل، چاته :-** د سترگو په څوکو کتل ، په ترس کتل.

ستا په کونج د سترگو راکتو مې غم فنا کړو
ډېرې که تيارې دي راښې به ئې کافور کا (حمزه)

**کونجاره :-** ( کو + ن + جا + رَ)(اس ، مو) کونجاره ، کنجاره جمامه، جماهان

**کونجاړه :-** ( کو /کُ + ن + جا + ړَ )(اس ، مو ، ج ـــــړې)کَل ، کهل ، د تېلو واله دالو هغه بوس چې په گانۍ کښې د وېستلو نه پس پاتې شي . دا اوښانو او غواو مېښو له ورکوي.

**کونجرے :-** ( کو + ن + ج + رے ) (اس ، مذ ، ج ـــرې) د ديوال نقش.

**کونجک :-** ( کو /کُ + ن + ج + ک )(اس ، مذ ، ج ـــــونه) د ,, کـــولنج ،، تصغير دے.ووړوکے کونج يا کنج ، ووړوکے گُټ زاويه.

**کونجکه :-** ( کو /کُ + ن + ج + کَ )(اس ، مو ، ج ـــــکې)کنجکه ، کوړۍ.

**کونجلغ :-** ( کو /کُ + ن + ج + ل + غ ) (صف ، مذ ، مو ـــــه )(۱) گړونجو واله ، غونجو واله گونجلک (۲) چيچړ (۳) (د يخنۍ په وجه) راغونډ شوے راټنډ شوے.

**کونجي :-** ( کو /کُ + ن + جي )(اس ، مو ، ج ـــانې /گانې) (۱) چابي ، کلي ، کليد ، کنجي (۲) جرنده ، قلف.

**کونجي :-** ( کو /کُ + ن + جي )(صف) يو بل سره نښتے ، الوول شوے.

**کونجۍ :-** ( کو + ن + ج + ی )(اس ، مو) خاورينه انجوره ، د شوملو (شلومبو) د ښنکلو خاص قسم لوښے.

**کونجۍ :-** ( کو + ن + ج + ی )(اس ، مو) يو قسم (سخت) کاڼے چې جرنده ترې جوړولے شي.

**کونجے :-** ( کو + ن + جے )(اس ، مذ ، ج ـــجي) کوپے ، کړوپ ، ډېر زيات بوډا سړے

**کونځله :-** ( کو + ن + (د) ز + ل) (اس ، مو ، ج ـــلې) (و ـــــ کنځله)

**کونڅۍ :-** ( کو + ن + (ت) س + ی)(اس ، مو) کوڅۍ ، کمڅۍ ، کنڅۍ ، د ښځو وېښتهٔ.چې اودلے شوې وي.پرگسې (اورکزي).

**ـــــکول :-** (د ښځو ) وېښتهٔ اودل.

**کونداژه :-** ( کو + ن + دا + ژَ ) (اس ، مو ، ج ـــــږې) پياله.

**کونداغ :-** ( کو /کُ + ن + دا + غ) (اس ، مذ ، ج ـــــونه) د ټوپک لرگينه حصه ، کومه چې اوږے ته اړمولے شي.کنداخ ، قنداق.

**کوندروزے :-** (کو /کُ + ن + د + رو + زے )(اس ، مذ ، ج ـــــزي) سور مرچکے

**کوندروکے :-** ( کو /کُ + ن + د + رو + کے ) (اس ، مذ ، ج ـــــکي) د ,, کوندرے ،، تصغير دے. ووړوکے دسترخوان.

**کوندرے :-** ( کو /کُ + ن + د + رے ) (اس ، مذ ، ج ـــــري) دسترخوان ، د ډوډۍ څپوڼے.

**کوندرے :-** ( کو /کُ + ن+ د + رے )(اس ، مذ ، ج ـــري) د اوړو نه پيړه جوړونه.

**کوندرے :-** (کو /کُ + ن + د + رے ) (اس ، مذ ، ج ـــــري) د برستن (برڼے) مخ

**کوندرے :-** ( کو /کُ + ن + د + رے )(و ـــــ کوتندرے ).

**کوندرے :-** ( کو /کُ + ن + د + رے )(اس ، جم) کندې ، ژور ځاے (جور ځاے) ډوغل (دا لفظ عموماً ,, کندې ،، سره يو ځاے راځي ).

**کوندرېزے :-** ( کو + ن + د + رې + زے ) (اس ، مذ ، ج ـــــزي) د گډو د يو مرض نوم دے.چې کُلمې (قلمې) ئې په کښې سرې شي.

**کونډړے :-** ( کو /کُ + ن + د + ړے ).

**کونډوړے :-** ( کو /کُ + ن + دو + ړے ) (اس ، مذ ، ج ـــــړي) ډوغل ، کنده، ژور ځاے.

**کونده :-** ( کو /کُ + ن + دَ ) (اس ، مو ، ج ـــــدې) د سسپار وغېره کنده

**کونده :-** ( کو /کُ + ن + دَ ) (اس مو ، ج ـــــدې) د يو بوټي په څانگه کښې د بل بوټي کچه څانگه لگونه.

**ـــــلگول :-** د يو قسم بوټي په څانگه کښې د بل بوټي نرۍ کچه څانگه لگول.

**کونده :-** ( کو /کُ + ن + دَ ) (اس ، مو ، ج ـــــدې) د درد قطع کېدل ، د درد غوڅېدل ، درد ختمېدل.

**کوندي :-** (کو /کُ + ن + دي )(صف) د طيلے څيز خصوصاً (کلاه) د سرېښ وغېره په ذريعه صفا کونه.

**ـــــکول :-** د طيلے څيز لکه کوله (کلاه) وغېره په سرېښو وغېره سره صفا کونه. چې خيره ترې لرې شي او طيله ئې وځلېږي.

**کوندے :-** ( کو /کُ + ن + دے ) (اس ، مذ ) (۱) د مچو غني نرے پړے يا مزے (۲) هغه نرې مزے وغېره چې د بوجۍ خولهٔ پرې بندولے شي.

**کوندے :-** ( کو + ن + دے ) (اس ، مذ ، ج ـــــدي) پېچ و تاب ، تاوېدنه او ناقلارې ، بې چيني.

**ـــــکول :-** تاوؤل ، د نچوړولو دپاره تاوؤل.کله د ولې نه په سپينولو يا کوندي کولو کې جامه مثلاً زيان شوه تاوان پرې اوړي په اتفاق سره .
(فتاوائے احمدشاهي) (ړه پانگه)

**ـــــ کوندے کېدل :-** د ډېر سخت درد له کبله تاوېدل راتاوېدل.پېچ و تاب خوړل.ناقلارے څرگندول.

**کوندے :-** ( کو + ن + دے )(اس ، ج ) (۱) د کونده نمبر ۱ ، ۲ جمع ده. (۲) د ,,کونده ،، اضافي او مجروري وغېره (متغير) شکل.

**کونډ :-** ( ک + و + ن + ډ )(اس ، مذ ) د گډو وغېره د زېږون وخت.

**کونډ :-** (ک + و + ن + ډ )(اس ، مذ ) حيض ، د ښځو مياشتيزې وينې ، زړوکي

**ـــــ ورتلل**: – د ښځې حېض راتلل، زړوکي راتلل.
**پهــــ کښې کېدل**: – د ښځې حېض راتلل، په زړوکو کښې کېدل.
**کونډ**: – (ک + و + ن + ډ) یا (کُ + ن + ډ) (صف، مذ، موــــ ه) هغه سړے چې ښځه ئې مړه شوې وي.
**کونډــــ** (ک + و + ن + ډ ــــ) (کُ + ن + ډ ــــ) (سابقه) سابقه ده ـ نورو الفاظو سره لګي ـ او د خاوند مړي ښځې معنې ورکوي.
**ـــــ تون**: – (ــــ تو + ن) (پ تر، اس، مذ) د خاوند مړې ښځې حالت، د خاوند د مرګ نه پس د ښځې ژوند.
**ـــــ تیا** (۱) (ــــ ت + یا)
**ـــــ توب** (۲) (ــــ تو + ب)
**ـــــ والے** (۳) (ــــ وا + لے) (اس، (۱) مو، (۲، ۳) مذ) د ښــځې بــې خاونده کېدلو حالت کُنډتون.
**کونډ**: – (کو/کُ + ن + ډ) (اس، مذ) د حېواناتو زېږون، لنګون.
**کونډا**: – (کو + ن + ډ) (اس، مذ) د ارتې خولې لوے خاورین لوښے، لوے پرات، بورځنګ.
**کونډال**: – (کو + ن + ډا + ل) (اس، مذ، جـــونه) د ټوپک د کـالتوس کنښبنودو ځاے، خزانه.
**کونډاله**: – (کو + ن + ډا + ل) (اس، مو، جــــ لې) (۱) ګلدان، (۲) د بنګو د کس کولو لوښے.
**کونډاله**: – (کو + ن + ډا + لَ) (اس، مو، جــــ لې) کـونتی، هغـه (د لاس) لښته چې سر ئې (د نیولو دپاره) راکوږ شوے وي.
**کونډرے**: – (کو + ن + ډ + رے) (اس، مذ، جــــ ري) کنډ، د ونو چیړ.
**کونډوس**: – (کو + ن + ډ + س) (اس، جم) ګلقند، ګـل کند، د ګلونـو جوړ شوي خواږهٔ.
**کونډغالے**: - (کُ + ؤ + ن + ډ + غـا + لے) (اس، مـذ، جــــ لې) (۱) کچـه او معمولي کور، کوډله (۲) پـه غـرهٔ کښې د ګـډو بیـزو عارضـي ځـاے، چې پرېښودے شوے وي.
**کونډکي**: - (کو + ن + ډ + کي) (اس جم) هغه ډکي مکي او خشاک چې د ونو لاندې جمع شوي وي.
**کونډکي**: - (کو + ن + ډ + کي) (اس، جم) وارهٔ وارهٔ ویښتهٔ.
**کونډلژغ**: - (کـو + ن + ډ + ل + ژ + غ) (اس، مـذ، جــــ ونه) هغـه لرګے چې د قلبې د هر یوه غواي د مرۍ دواړو طرف تـه لګولے شي ـ چې سر (د ژغ/ جغ
**کوهدامن**: - (کو + ه + دا + م + ن) (اس مع) په افغانستان کښې د یوې علاقې نوم دے.
**کوهړ**: - (کو + ه + ړ) (اس، مـذ، جــــ ونـه) سـخته او کلکـه تازیانـه، کروړه.
**کوهسار**: – (کو + ه + سا + ر) (ف تر، اس، مـذ، جـــ ونه) غرئیـزه علاقـه، غرونو واله ملک، غوربند، غرمځے، کوهستان.
**کوهستان**: – (کو + هـ + س + تا + ن) (ف تر، اس، مذ، جـــ ونه) (۱) غرئیـز ملک، هغه ملک یا علاقه چې غرونه په کښې ډېر زیات وي ـ د غرونو سلسله ـ (۲) په خیبر پښتونخوا کښې قطب طرف ته یوه غرئیزه علاقه ـ (۳) د پښتنو وطن

که رښتیا وایم شهرشاه دا هسې نهٔ
لـکـه مـونږ یُو نه پیدا له کوهستانه خوشحال

**کوهستاني**: – (کو + هـ + س + تا + ني) (اس، مع، دا، کوهستانے، مو: کوهستانۍ) لغوي: د غرونو اوسیدونکې ـ د سوات په یوه علاقه اوسېدونکي خلک.
**کوهستانی**: – (کو + هـ + س + تا + ن + ی) د ,, کوهستانے ،، تانیث دے.
**ـــــ ژبه / جبه**: – (اس، مع) هغه خاص ژبه (جبه) چې د کوهستان په علاقه کښې وئیلے کېږي.
**کوهستانے**: – (کو + هـ + س + تا + نے) (اس، مذ، جـــ لي / نیان) (۱) د کوهستان د علاقې اوسېدونکے. (۲) د کوهستان علاقې سره متعلق یا د کوهستان علاقې ته منسوب.
**کوهلو**: – (کو + هـ + لو) (اس، مع) په بلوچستان کښې یو ښهر او علاقه.
**کوهي**: – (کو + هي) (ف تر، صف) (۱) غرئیز، غرونو واله (۲) د غرونـو اوسېدونکے (۳) د غرونو (سره تعلق لرونکے) غر ته منسوب.
**کوهے**: – (کـو + هے) (اس، مـذ، جــــ هي / ان) (۱) پـه زمکـه کښـې هغـه کنستلے شوے تنګ او ژور (جور) ځاے چې تل ئې اوبو ته رسیدلے وي ـ او خلک ترې اوبهٔ راوباسي ـ څاه، چاه (۲) ژور (جور) کنستلے شوے ځاے.
**ـــــ کنستل، چاته**: – چا ته نقصان رسولو دپاره چل فریب جوړول.

مه نه د بل سړي په لاز کښې
چېرې ستا به د کوهي په غاړه لاز شي (رحمان بابا)

**دزنې ــــ**: – (د + ز + نې ــــ) (پ تر، اس، مـذ، جــــ هي) هغه قُتـه چې د ځینو خلکو د زنې دپاسه پـه غوښـه کښې وي ـ دا د ښائست یـو علامت دے ـ زنخدان (په شاعرۍ کښې ئې ذکر ډېر راغلے دے).
**کوهېل**: – (کو + هې + ل) (و ـــ کوئل / کوئله)

د چمن پـه بـلبلانو کښې شور ګډ شو
چې نعیم د شپې فریاد لکه کوهېل کا (میا نعیم)

**کوے**: – (کو + ے) (اس، مذ، جــــ ئ) کـویلے، د دیـګ یـا د کټـوۍ لاندې پاتې شوے پوخ څیز.
**کوئے**: - (کو + ئے) (اس، مو) کوځه، ګلۍ،

که په تن خوشحال خټک دے ځنې لرې
دهٔ زړهٔ د یار په کوئے کښې جاروائهٔ کا

**ـــــ په کوئے**: – کوځه په کوځه

راغلم په ښهر لاس په لاس شوه له ما ورکه
کوئے په کوئے جاروزم پسې غوارم بخارا (خوشحال)

**خاکــــ**: – د کوځې خاوره

چې نسبت ئې د فردوس کړم خاک کوے ته
پـه انصـاف مې دا وئیل چې بدنما ئے دي (سعید خټک)

**کوے**: – (ک + و + ے) (اس، مذ) خاربښت، خارش، کهه.
**کوے**: – (ک + و + ے) (اس، مذ، جــــ وي) زړهٔ سوے.
**کوے**: – (ک + و + ے) (اس، مذ، جــــ وي) غُټې، تنکۍ، چیچک

د حمید لـه درد و دوکـه هغو څـهٔ زده
چې پرې تبر نهٔ وي د میني شرے کوے

**کـوے**: – (ک + و + ے) (فعـل) د ,, کـول ،، مصدر نـه د حال (واحد مخاطب) فعل
**کویان**: – (کو + یا + ن) (اس، مذ) د غوا د لنګون د وخت نزدې کېدلو سره د غـوا غلانځه، فـرج وغېـره را زوړندېـدل ـ د لنګون د وخت د رالنډېدلو نخښه وي.
**کوېـت**: – (ک + وے + ت) (ا س، مـع) یـو مشـهور عـرب ملـک، چـې دارالحکومت ئې هم کوېت دے.
**کوېټـه**: – (ک + وې + ټ) (اس، مـع) کوئټـه، کوټـه، د بلوچسـتان د صـوبې

دارالحکومت.

خپل کار څرګند کا په دا دوه ځايه
مردان د کوټې ، ښځې د کټ دي (خوشحال)

**کوے** :- ( ک + وې + د + ل ) ( مص ، مت )فرياد کول ، ژړا انګولاکول ، نعرې سورې وهل.

**کوېدل** :- ( ک + وې + د + ل ) ( مص ) غرغر کول.

**کوئېدن** :- ( ک + ئ + د + ن ) ( اس ، مو ، ج ـــ نې ) کوزده ، کوژدن، کوژده،

د جينۍ هلک ته يا د هلک جينۍ ته د منسوب کولو دستوره.

**کوېدونکے** :- ( ک +وې + دو + ن + کے ) ( اس فا ، ج ـــ کي ) ښوئېدونکے ، راښکته کېدونکے.

**کوېدے**:- ( ک + وې + دے ( اس مذ ، ج ـــ ي ) ډولۍ وړونکے ، هغه کس يا کسان چې د ناوې ډولۍ د خاوند کور ته وړي. ( عموماً دا کار بتياري کوي ) ( هـ ـ کُهار )

**کوېړه** :- ( ک + وې + ړَ ) ( و ـــ کريړه )

**کوېزه** :- ( ک + وې + زَ ) ( اس ، مو ، ج ـــ زې ) کوازه ، قوازه ، خوازه هغه ځاے چې معماران د ديوالونو خېژولو دپاره د خپلو اودريلو دپاره جوړوي.

**کوېژده** :- ( ک + وې +ژ + دَ ) ( اس ، مو ، ج ـــ دې ) کوژده ، کوزده ، کوئېدن

**کوېره** :- ( ک + وې + ګَ / ژَ ) ( اس ، مو ) يو غرئيزه ونه ده. سپين رنګې ، چې لرګے ئې سخت وي. او پاڼې ئې د ښوؤن په شان وي.

**کوېښ** :- ( ک + وې + خ / ش ) ( اس ، مذ ) ليک ، تحرير ، ليکنه.

**کوېښل** :- ( ک + وې + خ / ښ + ل ) ( مص ، مت ) ليکل ، کښل.

**کوئله** :- ( کو + ئې + لَ ) کوئله :- ( کو + ئے / ئې + لَ ) ( اس (۱) مـــذ (۲) مو ، ج ـــ کوئلې ) مشهوره خوش اواز تور رنګې مرغۍ ، چې د کارغهٔ نه لږه وړه وي ډېر ښکلے سوځناک اواز لري. عام طور سره د شپې خصوصاً پېش نمې کښې اوازونه کوي. ځينې پښتانهٔ ورته سپېره مرغۍ هم وائي.

**کوېل** :- ( کو + ئې + ل ) ( مص )کنستل ، توږل

لکه عبن هسې غبن
تهٔ دا يو ټکے وکـويه (ارزاني)

**زمکه**ـــ :- ( ز + م + ک ـــ ) ( م + ز + ک ـــ ) زمکه ګرول ، مجازاً شرمنده کېدل خجل کېدل ،

هر څوک بې مقصوده لاړ شي
پـه حشـر بـه زمـکه کويي (ارزاني)

**کوېل** :- ( کو + ئې + ل ) ( انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د مشينونو يوه پرزه چې تار په کښې د کوم غونډ څيز نه چاپېره شوے وي کائل.

**کوېله** :- ( کو + ئې + لَ ) ( هـ ، اس ، مؤ ، ج ـــ لې ) مشـهور سُـر غـړے مرغۍ ، سپېره مرغۍ ، کوئل.

**کوېلے** :- ( ک + وې + لے ) ( اس ، مذ ) هغه پخ کړے څيز کوم چې د ديګ ( يا ديګچې ، کټوۍ ) په وېخ کښې پاتې شي.

**کوېلے** :- ( ک + وې + لے ) ( اس ، مو ، ج ) فرياد ، نعرې سورې.

ـــــ**کوېدل** :- فرياد کول ، چغې سورې وهل ، په فرياد ژړېدل. زويه په کور کښې وچ ټوک ژويه ( عبدالقادر ) زوے ئې له لوږې کوېلے کويه. ( زړه پانګه )

**کوېلے** :- ( ک + وې + لے ) ( و ـــ کووکے )

**کوين** :- ( ک + وې + ن ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) ( څد ران ) کلنګ ، هغــــه اوسپنيزه اله چې د لرګي لاسکے لري. او زمکه پرې کنستے شي.

**کوينے** :- ( کو + ئې + نے ) ( و ـــ کوېلے )

**کويه** :- ( کو + يه ) ( ف ، اس ، مو ، ج ـــ ئې ) د رېښـمو د چنيجـي خـور يـا خول

**کويه** :- ( کو + يَ ) ( اس صوت ) د ګونګي اواز

ـــــ**کول** :- د ګونګي ( مارغهٔ ) اواز کول ، لکه : کراره شپه کښې ګونګ هم کويه نهٔ کوي.

**کويے** :- ( کو + يے ) ( و ـــ کوهے ).

**کوېلے** :- ( ک + وې + ئ + لے ) ( اس ، مذ ) کفګير.

**که** :- ( ک ) ( فعل ) د ,, کول ،، مصدر نه د ماضي فعل دے. کړ ( وکړ )

**که** :- ( کَ ) ( فعل ) د ,, کړل ) مصدر نه د امر ( وغېره ) فعل دے. اصلاً دا ,, کړه ،، روزمره خبرو اترو کښې اختصار پـه طـور ,,که،، وئيلے شي. لکه : دا کار ضرور وکه !

**که** :- ( کَ ) ( پ ، فعل ) د ,, کا ،، مخفف دے. کاندي ، کوي.

**که** :- ( ک ) (۱) د شرط توړے دے. لکه : که هغه راشي نو... (۲) پـه دوو يا زياتو متبادل څيزونو کښې د يو د انتخاب دپاره راځي. لکه : تهٔ ځې که پاتې کېږې ؟

ـــــ**چېرې** :- ( ـــ چې + رې ) ( حرف شرط )که چېرې ، فرض کړه چې

ـــــ**څهٔ هم** :- ( ـــ ( ت ) س + هـ + م ) ( فـ پـ تـر ، کلـه شـرط ) ( بـل ) اګرچې ، سره د دې چې. لکه : علم حاصل کړئ که څهٔ هم په چين کښې وي.

ـــــ**خداے ته منظوره وي** :-

ـــــ**خداے کول** :-

ـــــ**خداے وکړي** :- ( جمله ) د عربۍ د ,, انشاء الله ،، په معنٰی کښې استعمالېږي.

ـــــ**نه ؟** ( ـــ نَ ) ( پ تر ، جمله ) د يـوې خبـرې نـه پـس د اقـرار يـا د انکار د تپوس دپاره استعمالولے شي. لکه :- تهٔ به صبا له راشې که نه ؟

ـــــ**نهٔ ئې** :- ( ـــ ن + ئې ) ( جمله )که نهٔ وي. په بل صورت کښې که داسې ونهٔ شو.

امر دا دے چې له نهي لاس کوتاه کړې
او کـه نـهٔ وي خپل سر وګڼه مواس (رحمان)

ـــــ**هزار کاند** :- که ډېر کوښښ وکړي.

که هزار کاندي پښتون مغل به نهٔ شي
بـويه دا چې له زړهٔ وباسي دا خيال (خوشحال بابا)

ـــــ**ئې ګورې** :- محاوره : که غور فکر پرې وکړې.

دا وينا لـکه لـولئ دخوشحاله
که ئې ګورې ګاه د چا شي ګاه د چا (خوشحال)

**که** :- ( ک + ه ) ( ف ، صف ) وړوکے ، کچ ، ورکوټے ، کچنوټے.

ـــــ**نسب** :- کم نسب واله.

کـه نسبه عملدار به دې نمانځلے
بې عمله به ملزم عرب اتراک شي (حافظ)

**کهاته** :- ( کا + ت ) ( و ـــ کاته )

**کهار** :- ( ک + ها + ر ) ( و ـــ کهر )

**کهار** :- ( ک + ها + ر ) ( اس ، مذ ) د اسونو يو قسم دے. چې توربخن سور رنګ لري. او زنګنونه ئې تور وي.

**کهار** :- ( ک + ها + ر ) ( اس ، مذ ) يو قسم متبائي ده. چې د وړو دپاره پـه کور

کښې جوړولې شي.

**کهار** :- ( ک + ها + ر ) (صف ، اس ، مذ ، ج ــــ ان ) کوېدے ، ډولۍ وړونکے ، بټیارے.

**کهار** :- ( ک + ها + ر ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه ) (۱) سکاڼ ، تور رنګے.

که په رنګ سره کهار په خوئي ابلق وو

په صورت له غوښو خلاص لکه عصا (شمس الدین)

(غالباً معني په هندي د ,,کهار،، نه اخستے شوې ده. کهار په هندي کښې ډولۍ وړونکو ته وائي. چې عموماً تور سکڼ وي) (۲) ډولۍ وړونکے د پیربابا پالکۍ اوچته کړه کهارانو د بیچاوښې صاحب ئې هم لاړ له څنګه. (پښتانۀ شعراء)

**کهاره** :- ( ک + ها + رَ ) ( و ــــ کواره )

**کهاړه** :- ( ک + ها + ړَ ) (اس ، مو ، ج ــــ ړې ) د پرې وغېره نه جوړه شوې هغه حلقه شان. چې په مېنځ کښې ئې ټکۍ وي د ګل جړې دائره ، هدف ، نښانه ، موخه.

**کهاړه** :- ( ک + ها + ړَ ) (اس ، مو ، ج ــــ ړې ) منجیله ، د وښو یا د نرو چمکو (لښتو) نه جوړه شوې هغه حلقه. چې منګي وغېره پرې کښېښودے شي.

**کهاړه** :- ( ک + ها + ړَ ) اس ، مو ، ج ــــ ړې ) د نرو لښتو نه جوړه شوې ټوکرۍ ، کوارچه.

**کهاښ** :- ( ک + ها + خ / ش ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) فکر.

**ــــ من** :- ( ــــ م + ن ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه ) (بل) فکر مند ، متفکر

**کهال** :- ( ک + ها + ل ) (ع ، صف ، اس ، مذ ، ج ــ ان ) (۱) سست ، کاهل

پاخېدے نۀ شي له ځایه

په زړۀ غوخ په تن کهال شي (رحمان بابا)

(۲) کمزورے

**کهالول** :- ( ک + ها + ل + و + ل ) (مص ) (۱) سستول ، سستي ، (په چا کښې) پیدا کول ، کاهل کول (۲) کمزورے کول.

**کهاله** :- ( ک + ها + لَ ) (اس ، مو ، ج ــــ لې ) د ,, کهال ،، تانیث دے.

**کهالے** :- ( ک + ها + لے ) (اس ، مذ ، ج ــــ لي ) ستوماني ایستنه ، غزونې.

**کهالي** :- ( ک + ها + لي ) (اس ، مو ) (۱) سستي ، کاهلي (۲) کمزوري ، صعف.

**ــــ اچول** :- ستوماني اېستل.

**ــــ کول** :- سستي کول ، کاهلي کول ، د سستۍ نه کار اخېستل.

**کهالېدل** :- ( ک + ها + لې + د + ل ) (مص ) (۱) سستېدل ، کاهل کېدل ، سستي

راتلل. (۲) کمزورے کېدل.

**کهانت** :- ( ک + ها + ن + ت ) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ونه ) د غېب خبرې ښودل ، غېب ګوئي ، فال اېستنه ، پال اېستنه.

**کهانچه** :- ( ک + ا + ن + چَ ) (هـ ، اس ، مو ، ج ــــ چې ) د چرګانو د بندولو لويه پنجره

**کهتر** :- ( ک + ه + ت + ر ) (ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) (۱) وړوکے ، کچ (۲) کم تر ، د کمې درجې ، ادنیٰ

**کهتري** :- ( ک + ه + ت + ري ) (ف ، اس ، مو ) کم والے ، وړوکوالے ، کچني توب (د اعلیٰ درجې نه) ښکته درجې ته پرېوتنه. زوال

هېڅ ګمان د بهترۍ وربانديې مه کړه

کهتري ده وار په وار د دې دنیا (رحمان بابا)

**کهتونۍ** :- ( ک + تو + ن + ی ) (هـ ، اس ، مو ) د پټواریانو هغه فارم چې په کښې د هر یو کس د زمکې او د کر کروندې په حقله کېفیت لیکلے وي.

**کهر** :- ( ک + هـ + ر ) (اس ، مذ ، ج ــــ ان ) فراش ، د امراو په مانړو کښې فرش غوړوونکے ، خادم.

**کهرب** :- ( ک + ر + ب ) (هـ ، اس ، عدد ) د سلو اربو برابر شمار ، لس زره کروړه

**کهربا** :- ( ک + ه + ر + با ) (ف تر ، اس ، مذ ) لقطي وانښۀ تښتوونکے ، یو زیړ رنګې مهره چې که په څرمن یا په رېښمو ومږلے شي او وښو ته نزدې کړې شي نو وانښۀ ځان ته راکاږي. مقناطیسي کشش لرونکے.

**کهرج** :- ( ک + ر + ج ) (هـ ، اس ، مذ ) په اووو سرونو کښې اولنے سر. چې د ټولو نه ښکته دے. د دغې نوم وجه ئې دا ده چې دا اواز د طاوس د اواز په شان دے.

**کهړ** :- ( ک + هـ + ړ ) د ,, کوړ ،، بدل شکل دے. ( و ــــ کوړ )

په اولاد کښې د غم وینه

ډېر د کهړ په رنځ مرینه (ادم درخو)

**کهړکۍ** :- ( ک + ړ + ک + ی ) (هـ ، اس ، مو ) باري ، دریچه (په پښتو کښې د ,, کهـ ،، اواز نشته ځکه ,, کړکۍ ،، لیکلے شي)

**کهسار** :- ( ک + هـ + سا + ر ) (ف ، اس ، ج ــــ ونه ) غر ، غرئیزه علاقه ، کوهستان

خزانې د هندوستان دې راخورې شوې

سرۀ مهران دې تتوئې په کهسار (خوشحال)

**کهښت** :- ( ک + هـ + خ / ښ + ت ) (اس ، مذ ) کوښښ ، کاهش ، سودا.

**کهف** :- ( ک + هـ + ف ) (ع ، اس ، مذ ) (۱) غار ، سمڅ ، ګاره ، تیوزه.

(۲) (مع ) د یو خاص غار نوم چې په موجوده ترکي کښې دے.

**کهکشان** :- ( ک + ه + ک + شا + ن ) (ف ، اس ظر ) کاهکسان

په اسمان کښې بې شمېره ستورې دي چې زمکې نه دومره لرې دي. چې په اسمان کښې سپینه لار غوندې ښکاري. یعنې داسې لار چې لکه وانښۀ پرې راښکلے شوے وي. (پښتو کښې ,,د پېغمبر صاحب د اس دوړه ،، ورته وائي) څوک ورته د پیو لار او څوک د اسمان ګنګا (سیند) ورته وائي.

د فلک په کهکشان ئې نظر نۀ وي

چې د نار په توسن باندې کاندې زین (حمید)

**کهګل** :- ( ک + ه + ګ + ل ) (ف تر ، اس ، مذ ) خته چې په کښې وانښۀ (بوس) ګډ کړے شي. (دا د دیوالونو او چتونو د لیو کولو دپاره پکارېږي)

**کهل** :- ( ک + هـ + ل ) (اس ، مذ ، ج ــ ونه ) د یوې ونې نوم دے. زګېرل

**کهلاړي** :- ( ک + لا + ړي ) (هـ ، اس ، مو ) (۱) لوبغاړے د لوبې ماهر ، کرتب کوونکے ، کرتبي (۲) چالاک ، مکار ، فریبي ، دغاباز.

**کهماج** :- ( ک + ما + ج ) (هـ ، اس ، مذ ) د یوې راګنۍ نوم دے.

**کهن** :- ( ک + هـ + ن ) (ف ، صف) زوړ ، د ډېر وخت.

**ــــ سال** :- ( ــــ سا + ل ) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) د ډېر عمر ، زوړ ، زوړ عمرے.

**ــــ سالي** :- ( ــــ سا + لي ) (ف تر ، اس ، مو ) وړ والے ، زړتیا ، بوډاتوب ، بوډاوالے. زوړ عمري ، ضعیفي.

**کهنډ** :- ( ک + ن + ډ ) (هـ ، اس ، مذ ، ج ــ ونه ) قفد ، خوارۀ ، مصري (په پښتو کښې د ,, کهـ ،، غږ نشته ځکه کاف سره تلفظ کېږي او کنډ لیکلے شي).

**کهنګه** :- ( ک + هـ + ن + ګَ ) (صف ، ج ــــ ګې ) لوړ قد واله او غټه.

کنګه دا لفظ ,,پېغله ،، سره د صفت په طور یو ځای راځي .لکه :- فلانۍ ښځه کهنګه پېغله ده.

دنګه تازه کنګه قد عرعره ، موکمره
ښه ئې تـــر ګلابو تر ګلونو دي عذرا (خوشحال)

**کهنګي** :- ( ک + هـ + ن + ګي )( ف اس ، مو ) (۱) زوړ والے ، زوړتوب ، زړتوب (۲) بوډاتوب ، بوډاوالے ، ضعیفي پیري.

**کهنه** :- ( ک + هـ + نَ ) (اس ، مو ، ج ـــــ نې ) ګنجائش لکه : کهنه درلودل

**کهنه** :- ( ک + هـ + نَ ) (ف ، صف ) زوړ ، د ډېر وخت ، پخوانے ، سانحورده.

یـــا پـــاکـه روضه مې د حضرت جارو کولے
توئے مې کړې له تنه د عصیان کهنه ګردونه (حافظ)

**کهواړه** :- ( ک + هـ + وا + ړَ ) (و ـــــ کواړه )

خطا به نۀ شي له هدفه تقدیر له بنده
چې د تقدیر غشے په میان د کهواړه راشي (حافظ)

**کهوټ** :- ( کو + ټ ) ( و ـــــ کوټ ، کوټه ) ( په پښتو کښې د ,,کهـ ،، غږ نشته ځکه د هندۍ د ,,کهـ ،، غږ واله الفاظ ,,ک ،، سره وئیلے او لیکلے شي ).

**کهول** :- ( کو + هـ + و + ل ) ( مص ) قے یا التۍ وروستل.زړۀ خرابول

د رقیب کـیـنـه ئې خـــوا کـهوي هسې
لکه مچ په اب و خور کښې شي د چا ګډ (حمید)

**کهول** :- ( ک + هو + ل )(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) (۱) خانـــدان ، ټبـــر ، کورنۍ

(۲) ښځه ، ماندینه ، ټبر (۳) طائفه ، ټولے (۴) نسل ، اولاد قیصې یو کهول نه بل کهول ته خولۀ په خولۀ رسي.

**کور او ـــــ کېدل، سره** :- یو بل سره کلک دوستان جوړېدل .پاخۀ دوستانه تعلقات جوړېدل.

**کهـول** :- (ک + هـو + ل ) ( ع ، صف ) نیمزالې، پوخ عمر تـه رسـېدلے سړے ګروښتے ، سنغړے ، چل زېرے ، کړوښتے ، شناورګے.

**کهولت** :- ( ک + هـو + ل + ت )( ع ، اس ، مـذ ) (۱) پـوخ عمـر ، هغـه عمـر چـې د ځوانۍ او بوډاتـوب تـر مېنځـه ، میانـه سالي ، (۲) کـاهلي ، سسـتي ، کږ وېښتوب.

**کهولي** :- ( ک + هو + لي ) (و ـــــ کهول والے )

**کهه** :- ( ک + هَ )(اس ، مـذ ، ج ـــــ هـې ) (۱) خاربښت ، کهښت ، د بـدن ګرېدنه ، (۲) خواهش (۳ ) د زړۀ خرابېدنه ، قې یا التۍ (ورتلنه)

چې په زړۀ ئې ستا د هجر کهه راشي
د دنیا خواړۀ به واړه له خولې قې کا (حسین)

**کهۍ** :- ( ک + هـ + ۍ ) (اس ، مـو ، ج ـــــ ګانې ) (۱) وړه کـودالۍ ، هغـه وړه کودالۍ چې بوټي پرې وباسي.(۲) د زمکې د کنستلو هغه اله چې یو طرف ته ئې څوکه وتې وي او بل طرف ئې لکه د بېلچې پلن وي.

**کهۍ** :- ( ک + هـ + ۍ ) (اس ، مو ) د جرندې (یا د میچنې ) تبرک.

**کهے** :- ( ک + هے )(اس ، مذ ، ج ـــــ هي ) یـو قسـم اوږدۀ وابنـۀ دي چـې ډکے ئې کلک او بند بند وي .قلمونه ترې جوړولے شي .او پـه چتونـو څپرونو کښې استعمالېږي.

**کهے** :- ( ک + هے )(اس ، مذ ، ـــــ هي ) د لښتو بوټو وغېره نه جوړه شوې اله چې د اوبو بند پرې کلکولے شي.

**کهے** :- ( ک + هے )(اس مذ ، ج ـــــ هي ) کمزورے ، مانده ، نرے نروچکے.

**کهے** :- ( ک + هے )(اس ، مذ ، ج ـــــ هي ) کنده ، خندق.

**کهے** :- (ک + هے )(اس،مذ ، ج ـــــ هي )( بل ) بتروالے ، د بهتري په مقابله کښې

ـــــ **له تلل ( بل )** حالت خرابېدل ، بتر کېدل لکه : (بیمار ) ورځ په ورځ کهي له تلې کهي ئې ونه کړله.

**کهیتـران** :- ( کهے + ت + را + ن )(اس ، مع ) مخلوط قبیله ده .وائي چې د خرشبون د زوے کسي یا کاسي په دریو زامنو کښې یو د دوي غور نیکۀ وو .د هغۀ نور دوه ورونه کانسي او شنواري نومېږي .کهیتراني د دوي د ژبې نوم هم دے.

**کهېدل** :- ( ک + هې + د + ل )( مص لا ) قے ورتلل ، اُلتۍ ورتـل ، بـاقۍ ورتلـل ، زړۀ خرابېدل.

عاشقي مې هبته د خولې مذاق کا
بې دلبره که ترې خورم پرې کهېږم (حسین)

**کهېدل** :- ( ک + هې + د + ل ) ( مص لا ) ورو ورو ناجوړه او کمزورے کېدل . زهیرېدل ، ټپېدل ( خفه کېدل ، خوابدے کېدل ) (زړه پانګه)

معشوقه ترخۀ وئیل کا
په ترخو ئې مه کهېږه (احمد شاه)

**کهېدنه** :- ( ک + هې + د + نَ )( حمص ) ورو ورو کمزورے کېدنه او ټپېدنه.

**کهېدۀ** :- ( ک + هې + د ) ( و ـــــ کهېدنه )

**کهین** :- ( ک + هي + ن ) ( صف ، مذ ، مو ـــــ ه ) غت ، پېړ بایده دي چې میانه جامه د ډېره اغوندینه ، چې میانه وي نه مهینه نه کهینه . (فوائد شریعت )

**کهین** :- ( ک + هي + ن ) ( صف ، مذ ، مو ـــــ ه ) د کرکې وړ ، قابل د نفرت لکه : فلانے له شیطانه لا کهین دے.

**کۍ** :- ( ک + ۍ ) ( فعل ) د ,,کړۍ ،، لنډیز شکل دے .چې په روزمره خبرو اترو کښې استعمالېږي.

**کۍ** :- ( ک + ۍ ) (اس ، ج ) (۱) ( د ماشـومانو ژبـه ) خـراب ، ګنـده (۲) د ماشومانو غل.

ـــــ **کول** :- ( د ماشومانو ژبه ) د ماشوم غل کول

**کے** :- ( ک + ي + ئ ) (اس ، مذ ) داغ

په دا باغ کښې ډېر ګلونه شګفته شي
د لالاغوندې د هر چا په زړۀ کئے دے (خوشحال)

**کے** :- ( کے ) (اس ، مع ) د ایران د کیاني بادشاهانو لقب

چې په وخت ئې د مهار عشرت په مے دے
بـــادشاهي ئې مبارک شه لـــکه کے دے (خوشحال)

**کے** :- ( کے ) ( حرف ) د ,, که ئې ،، لنډیز شکل دے .عموماً په روزمره خبرو اترو کښې یا په شعرونو کښې استعمالېږي. لکه : یو خبره درته کوم کے منے !

**کے** :- ( کے ) ( فعل ) د ,, کړے ،، لنډیز شکل دے .روزمره خبرو اترو کښې استعمالېږي.

**کے** :- ( کے ) ( حرف ) حرف دے .چې د ,,دننه،، د په کښې وغېره معنې ورکوي.

عموماً کښې لیکلے کېږي .چې تلفظ ئې ,, کے ،، شے او کشے وغېره کېږي پخوا به ,, کښ ،، لیکلے کېدۀ.

ـــــ **اېستل** :- ( ـــــ اې + س + ت + ل ).

ـــــ **یستل** :- ( ـــــ ي + س + ت + ل ) (۱) ورننه باسل و ورداخلول . (۲) راګیرول ، ګرفتارول ، ننبلول (۳) په جنګ وروستل.په جنګ کول (کښې اېستل / یستل هم لیکلے شي)

ـــــ **اېستنه** :- ( ـــــ اې + س + ت + ن ).

ـــــ **یستنه** :- (ي + س + ت + نَ ) ( و ـــــ کې اېستۀ ) (,کښے ،، هم لیکلے شي )

**ـــــ ابستهٔ** :- (ـــــ اي + س + ت)

**ـــــ یستهٔ** :- (ـــــ ي = س + ت) (حمص) (۱) ګیرونه ، نښلونه ، ګرفتارونه (۲) په جنګ کؤنه ، په خپله کښې اچونه . (۳) داخلونه ، ورمنډنه

**ـــــ باسل** :- (ـــــ با + س + ل) (وـــــ کے ابستل) کېباسل او کښېباسل هم لیکلے شي).

**کیائه** :- (ک + یا + زَ) (صف ، مو) مړاوے ، مړغېچن پژمرده .

**ـــــ کېدل** :- مړاوے کېدل ، مړغېچن کېدل ، پژمرده کېدل.

**کیاري** :- (ک + یا + ر + ری) (اس ، مو) په لوے پټي کښې واړهٔ واړهٔ پټي چې په کښې ګلونه ، سبزي وغېره کرلے شي. (۲) په پټي کښې هغه وړې وړې برخې چې د اوبهٔ خور دپاره جوړولے شي.

**کیازه** :- (ک + یا + زَ) (اس ، مو) لاړې ، د خولې اوبهٔ یا لعاب.

**کیاست** :- (ک + یا + س + ت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه).
هوښیاري ، دانائي . ځیرکي ، فهم فراست ، ځورتیا ، ځیرتیا ، عقل پوهه.

**کیال** :- (ک + یا + ل) (ع ، صف ، مذ) کچ کوونکے ، کچ ګر ، پیمائش کوونکے.

**کیاني** :- (ک + یا + ني) (اس ، مع) د یو خاندان نوم . چې ځان د ایران د پخواني بادشاهانو د نسل نه ګڼي چې ,, کیان ،، بللے کېږي. (کیان د ,, کے ،، جمع ده)

**کېبر** :- (کې + ب + ر) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) دوبناخې ، (د زمیندارانو مشهوره اله).

**کېبل** :- (کې + ب + ل) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د بجلۍ یا د ټیلیفون غټ تار یا تارونه (چې د پاسه پرې ربړ وغېره ختلے وي . چې د خاورو اوبو نه محفوظ وي).

**کېبنټ** :- (کې + ب + ن + ټ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) وړوکې کوټه چې د صلاح مشورې دپاره مخصوصه وي . (۲) کابینه ، د وزیرانو هئیت . د وزیرانو ټولنه.

**کېپ** :- (کې + پ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) قبف.

**کېپ** :- (کې + پ) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) کلک ، مضبوط ، ټینګ ، ګیپ

**ـــــ نیول** :- کلک نیول ، ټینګ نیول ، ګیپ نیول.

**کېپټن** :- (کې + پ + ټ + ن) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان) (۱) کپتان ، په فوځ کښې یوه لویه عهده . (۲) د جهاز لوے افسر (۳) د لوبغاړو د ټولۍ (ټیم) مشر.

**کېپسول** :- (کې + پ + سو + ل).

**کېپشول** :- (کې + پ + شو + ل) (انګ ، اس ، مذ) یو وړوکے شان (د اوبهٔ کېدونکې مسالې نه جوړ) پوښ چې اوچ دارو په کښې اچولے شي.

**کېپیټلزم** :- (ک + پي + ټ + ل + ز + م) (انګ ، مذ) د سرمایه دارۍ نظام ، جاګیردارانه نظام.

**کېپیټلسټ** :- (کې + پي + ټ + ل + س + ټ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان) د سرمایه دارانه نظام حامي ، سرمایه دار ، جاګیردار.

**کېت** :- (کې + ت) (اس ، مذ) دین ، ائین ، کېش.

**کیتر** :- (کي + ت + ر) (اس ، مع) یوه کاسي یا کاسي قبیله ده.

**کیتلۍ** :- (کې + ت + ل + ی) (انګ ، اس ، مو) د ارتې خولې وړوکے دېګچې چې په کښې اوبهٔ یشولے شي. (انګ ـــــ کېټل) کېتو :- (کې + تو)

**کېټو** :- (کې + ټو) (اس ، مع) د پاکستان مشهور غر . چې په دنیا کښې د مؤنټ ایورسټ نه پس د ټولو نه لوړه څوکه لري.

**کېټولک** :- (کې + تو + ل + ک)

**کاتولیک** :- (کې + تو + لے + ک) (انګ ، اس ، مع) د عیسائیانو یوه لویه ډله . چې د پخوانۍ عقیدې پیرو دي . او د روم پوپ خپل دیني پېشوا ګڼي.

**کېته** :- (کې + تَ)

**کیته** :- (کي + تَ) (صف ، مو) ویړه ، پرانستے.

**ـــــ خولهٔ نیول** :- وازه خولهٔ نیول . حېرانېدل لاجوابه کېدل ، ویته خولهٔ نیول.

**کېټلۍ** :- (کې + ټ + ل + ی) (اس ، مو) هغه کوټګۍ چې په کښې چرګې چرګان ساتلے شي . مرغي خانه.

**کېټو** :- (کے + ټو) (اس ، مع) د همالیې د غرونو د سلسلې په دنیا کښې دویمه اوچته څوکه چې په پاکستان کښې ده.

**کېټیګري** :- (کې + ټي + ګ + ري) (انګ ، اس ، مو) قسم ، صنف ، طبقه ، ډله

**کېټلاګ** :- (کې + ټې + لا / لو + ګ) (انګ ، اس ، مذ) فهرست و د کتابونو وغېره لسټ.

**کېج** :- (کې + ج) (صف ، اس) هغه څیز چې سخت وي او په غاښونو نهٔ مېده کېږي . کېځ . خصوصاً سبزي ترکاري ، چې په بوټي کښې پرې ډېر زیات وخت واوړي او کلکه شي.

**ـــــ کېدل** :- (۱) د سبزۍ ترکارۍ وغېره په بوټي کښې د زیات وخت په اوړېدلو سره کلکېدل او د خوراکه (یا د پخولو) څخه وتل . (۲) پرې لــه چې ډېر زیات تاو ورکړے شي او کلک او شخ شي.

**کېجلے** :- (کې + ج + لے) (صف ، مذ ، ج ـــــ لي) (۱) سخت او کلک (۲) شوم ، بدخویه ، بد سلوکه.

**کېجم** :- (کې + ج + م) (اس ، مذ) هغه نمده یا کپړه کومه چې د زین د لاندې د خولو اوچه ولو دپاره اچولے شي.

**کېچ** :- (کې + =) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د خامتا یا د خامتا په شان د کوم غټ ټوکي ځادر ، کېش ، (هـ ـ کهیس)

**کېچټ** :- (کې + چ + ټ) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) د کم عمر ، وړوکے ، د لړو کالو

**کیچړے** :- (کي + چ + ړے) (اس ، مذ ، ج ـــــ ړي) مشهوره خوارکه ، چې د وریجو (وریژو) او د میو نه جوړولے شي . عموماً د خوراک په وخت په مېنځ کښې ئې ډوغل جوړ کړي او غوړي په کښې واچوي. کهچـــړے تروت هم ورته وائي.

تود کچړے د غواو غوړي په وخت د تري
تـــر حـــلوا تـــر سکـــوا زیات لري هنر (خوشحال)

**کیچے** :- (کي + چے) (صف ، مذ ، مو ـــــ ی) وړوکے ، کم عمره ، د لږو کالو

**کېځ** :- (کې + (ت) س) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) قبر ، ګور.

**کېځکنے** :- (کې + (ت) س + ک + نے) (اس ، مذ ، ج ـــ نې) قبر کنستونکے ، قبر کندے.

**کېځه** :- (کې + (ت) سَ) (اس ، مو ، ج ـــ ځې) کځوره ، کیسه

د روح در به مرګ وکاږي
سا لـه دے خالي کیځے (ارزاني)

**کېخکه** :- (کې + خ + کَ) (اس ، مو) هغه هندوانه چې ډېره پسته وي . او یو اړخ ئې سخا او تور شوے وي.

**کیخهٔ** :- (کي + خ) (اس ، مو) خاکي ماشے.

**کیخے** :- (کي + خے) (اس ، مذ ، ج ـــــ خي) (۱) کخے ، واړهٔ واړهٔ چینجي چې د ماشومانو په ګېته کښې پېدا کېږي . (۲) هغه چینجي چې په سپرلي کښې ډېر پېدا کېږي.

**ــــــرا وچتبډل :-**

**ــــــرا پورته کبډل :-**

**ــــــرا ولاړبډل :-** په کُنه کښې چينجي په حرکت کښې راتلل.
مجازاً د څۀ وراني يا شرارت دپاره اماده کبډل.

**کبډ :-** ( کې + د ) ( ع ، اس ، مذ ، جــــ ونه ) مکر ، فريب ، ټګي ، دغا ، دوکه، درغلي ، درغلنه ، ارخښ.

**کبډل :-** ( کې + د + ل ) ( مص )(۱) د کوم کار په عمل کښې راتلل. ( ف ــ شدن ، هـ ، هونا ) (۲) رشته لرل لکه : فلانے ستا څۀ کبړي ؟ (۳) پيدا کبډل لکه : دا بوټي په غرونو کښې کبړي. (۴) قيمت لرل. نن صبا موټر په څو کبړي ؟ (۵) زېږېدل لکه :- د فلانئ زوے شوے دے . (۶) پيښېدل ، دوښاربدل

چې په کار زما د ميني کا څوک طعن
پــرې بــه وشي د هاروت د ماروت (حميد)

(۷) پيدا کبډل ، زرغونبډل.

هر چې اوکري جوار جوار به کبړي
لــه جوارو چا ګنے رودلے نۀ دے (حافظ)

(۸) غرېدل

لېــونے لېــونے تر شي
څو چې شي ورته سرود (خوشحال)

**کبډنه :-** ( کې + د + نَ ) ( حمص ) د کبډل مصدر نه حاصل مصدر دے چې د کبډلو ( شدن ) معنې ورکوي.

**کبډونکے :-** ( کې + دو + ن + کے ) ( اس ، فا ، مذ ، جــــ کي ) د ,, کبډل ،، مصدر نه اسم فاعل دے . ( ف : شدني ) کبډونے ، په عمل کښې راتلونے

**کبډۀ :-** ( کې + د ) ( وــــ کبډنه )

**کبډۀ :-** ( کې + د ) ( فعل ) د کبډل فعل نه د ماضي (مذکر) فعل دے. (خج په (د) باندې دے).

**کبډۀ :-** ( کې + د )د ,, کبډل ،، مصدر نه د ماضي (مونث) فعل دے.

**کبډۀ :-** ( کې + د )( فعل ) د کښېښنودل مصدر نه امر استمراري فعل دے. کښېږده. (خج په ,, د ،، باندې دے).

**کبډۀ :-** ( کې + د ) ( فعل ) کښېښودل مصدر نه د امر فعل دے. کښېږده. (خج په ,, کے ،، باندې دے)

**کبډے :-** ( کې + دے ) ( فعل ) د کښېښودل مصدر نه د حال (واحد مخاطب ) فعل ، تۀ کبډے. (کښېږدے).

**کبړټ :-** ( کې + ړ + ټ )( انګ ، اس ، مذ ) په فوځي تربيت ګاه کښې زده کړه کوونکے.

**ــــ کالج :-** (ــــ کا + ل + ج) د فوځيانو دپاره د تربيت ورکولو کالج.

**کير :-** ( کې + ر )( هـ ، اس ، مذ ، جــــ ونه ) مشهور خوراک ، چې د ماتو وريجو او د پيو او خوږو وغېره نه جوړولے شي. خوشبوي دپاره په کښې لاچي وغېره هم اچولے شي. (هــــ کهير)

**کير :-** ( کې + ر ) ( ف ، اس ، مذ ، جــــ ونه ) ذکر ، غنې ، د سړي آله تناسل ، غين ډکه.

**کبر :-** ( کې + ر )( اس ، مذ ، جــــ ونه ) کور ، خانه ، مکان ، د اوسېدلو ځاے ، لکه : ,, کبر مې در جار شه ،،

**کبرته :-** ( کې + ر + تَ ) ( اس ، مو ) يو قسم وابنۀ دي . چې د ګندنا په شان وي. خو د پاڼو ژۍ ( جې ) ئې ډېرې سختې او تېرې وي.

**کيرته :-** ( کې + ر + تَ )( اس ، مو ، جــــ تې ) هندوه.

**کيرړے :-** ( کې + ر + ړے ) ( اس ، مذ ، جــــ ړي ) مشهوره حشره ، چې په کورونو او د خوراک په ځايونو کښې عامه وي. او د شپې نرې اوازونه وباسي. ( ار ـــ جهينګر )

**کيرړے :-** ( کې + ر + ړے ) ( اس ، مذ ، جــــ ړي )د يوې غرئيزې ونې نوم چې پاڼې نۀ لري. د پاڼو په ځاے ډېرې نرې نرې ښاخګې لري. لرګے ئې غوړ وي د خشاک کار ورکوي.

**کبرغه :-** ( کې + ر + غ )( اس ، مو ) يو قسم شين بوټے دے چې سپين ګلونه کوي وبېخ ئې نرے او نرې نرې ازغي (اغزي) لري.

**کبريکټر :-** ( کې + ر + ک + ټ + ر )( انګ اس ، مذ ) (۱) کېفيت ، بڼه (۲) توره (۳) د اخلاقو مجموعه ، چې يو پرې له بله بيلېږي.

**کير کير :-** ( کې + ر + کې + ر ) ( اس صوت ) نرے تيرۀ اواز ، د کيرړي په شان اواز. د کيرړي اواز.

**کير کير :-** ( کې + ر + کې + ر + ک )( اس ، مذ ، جــــ ان ) يو شين رنګې مرغۍ ده. ماهي خورکه.

**کير کيرے :-** ( کې + ر + کې + رے ) ( صف ، مذ ، جــــ ري ) (۱) هغه سړے چې اواز ئې (لکه د ښځو په شان) ډېر نرے وي. د کير کير اواز کوونکے (۲) د ماشومانو د لوبو اله چې په تاولو سره کرکر کوي. اکثر په مېلو کښې خرڅېږي.

**کيرندۍ :-** ( کې + ر + ن + د + ۍ ) ( اس ، مو ) تبچه ، هغه اله چې د مرزانو د راغونډولو دپاره ترې اواز ايستے شي.

**کبروسين :-** ( کې + رو + سي + ن ) ( انګ ، اس ، جم ) د خاورو تېل.

**کيره :-** ( کې + رَ )( اس ، مو ، جــــ رې ) يو ونه چې پاڼې نۀ لري. تخم ئې د وړو وړو سرو دانو هسې وي. د خوراک دپاره پخولے شي.

**کيري :-** ( کې + ري ) ( اس ، مو ) د سرو زرو د ذرو را اېستلو دپاره د شګو د چڼوۀلو کار.

**ــــ توب :-** (ــــ تو + ب ) د سرو زرو ذرو دپاره د شګو د چڼولو کار.

**کيرۍ :-** ( کې + ر + ۍ )( اس ، مو ) (۱) د شګو د چاڼ کولو خاص غلبېل چې زر شوئے د سيند د شګو نه پرې زر بېلوي. (۲) هغې ښانک ته هم وائي چې د زرو شګې په کښې چڼولے شي.

د ناکام شګې مې درست عمر غلبېل کړې
زر د کام ولــې زمــا د کــيرۍ نــشته (حافظ)

**کيرے :-** ( کې + رے ) ( اس ، مذ ، جــــ ري ) هغه سړے چې د سيند شګې چڼوي چې د سرو زرو ذرې ترې وباسي.

**کبريير :-** ( کې + ري + ئ + ر )( انګ ، اس ، مذ ) مسلک ، حرفه ، پيشه ، د ژوند (جوند) لاره ، پرمختګ.

**کبړ :-** ( کې + ړ )( اس ، مذ ، جــــ ونه ) يو قسم عارضي پړده چې په کوټه کښې دننه جوړه کړے شي.

**کبړ :-** ( کې + ړ )( اس ، مذ ، جــــ ونه )(۱) د وښو ځانګو وغېره نه جوړ شوے کور. چپر ، څپری ، جونګړه (۲) پنډ غالے ، شپول ، ګاړه ، پناهي احاطه وغېره چې په کښې ګډې بزې بندولے شي.

**کبړ :-** ( کې + ړ )( اس ، مذ ، جــــ ونه ) هغه تخته چې د قلبې شاته تړلې وي او پټي پرې هواروي. منداوو.

**کبړکيچو :-** ( کې + ړ + کې + چو ) ( وــــ کړ کېچو )

**کبړه :-** ( کې + ړَ )( اس ، مو ، جــــ ړې ) د پښتو ځانګو مانګو جوړه کړې پرده شان چې د کندو يا د پردې يا د ديوال کار ترې اخستے شي. د چت د لهړو دپاسه هم اچولے شي.

**کبړه :-** ( کې + ړ )( ق ، اس ، مو ، ج- ړې ) د اوسپنې پولۍ چې د يوې د پالې

په کنده لګولے شي.

**کېږه** :- ( کې + ږَ )(اس ، مو ، ج ـــــ ږي) يو کوږ شان مېخ چې په يوې کنبې سپار پرې کلکوي. کونډے ، پولکه.

**کېږه ګے** :- ( کې + ږ + ګے ) ( ق ، اس ، مذ ، ج ـــــ ګي) د نرو لښتو نه جوړ شوے غونډ هوار چابړے شان چې څيزونه په کښې ږدي.

**کېږۍ** :- ( کې + ږ + ئ ) ( اس ، جم ) څپلۍ ، د پښو مشهور پيزار ، د څرمنې نه علاوه د وښو ( منجو ) نه هم جوړولے شي.

**کيز** :- ( کي + ز )( و ـــــ کوز )

**کېزه** :- ( کې + زَ ) ( و ـــــ قېزه )

ـــــ **کول** :- (۱) د اس په خولۀ کښې قېزه اچول. (۲) پــه قــابو کښــې راوستل.

وراندې وروستو ئې راواچول بندونه

پــه آحــوزے کــېزه کـړے وترلم ( خوشحال )

**کېژ** :- ( کې + ژ )( و ـــــ کېچ )

**کېژده** :- ( کې + ژ + دَ ) ( اس ، مو ، ج ـــــ دې )کوژده ، کوئيدن.

ـــــ **کول** :- کوژدن کول ، کوئيدن کول.

**کېږ** :- ( کې + ګ / ژ ) ( صف ) راسره يو ځاے يعني ,,راکېږ ،، د ,,راکېښ ،، په معنٰی راځي.

عاقبت پرې د ارمان کانړے راکېږ شي

پــه هر غولي چې بسيار شوه دا دنيا ( حسېن )

**کېږدل** :- ( کې + ګ / ژ +د + ل ) ( مص )کښېښودل ، اېښودل.

**کېږدلے** :- ( کې + ګ / ژ +د + لے )(صف ، اس ، مذ ، ج ـــ لي )سپک ، سپوتک ، خوار ، توزن.

**کېږده** :- ( کې + ګ / ژ +دَ ) ( فعل ) د ,, کښېښودل ،، مصدر نه د امر فعل ( = کښېږده )

**کېږدۍ** :- ( کې + ګ / ژ +د + ی ) ( اس ، مع ، کږدۍ ، د پاونده ؤ ( خانه بدو شو خلکو د بزو د وړی نه جوړه شوې خيمه. کچه کور ، جونګړه.

**کېږکه** :- ( کې + ګ / ژ + کَ )(اس ، مو ، ج ـــــ کې ) مشهوره مرغۍ ، کشکره ، کړغيچکه.

**کېږلے** :- ( کې + ګ / ژ + لے ) ( اس ، مف ، مذ ، ج ـــ لي ) کــړلے شــوے ، ذليل ، خوار ، مظلوم حقير.

**کېږه** :- ( کې + ګَ / ژَ ) ( اس ، مو ، ج ـــــ ږې ) هغه زمکه يا پټے چې د کروند دپاره تياره شوے وي. خرکه ، ( قندهار ).

**کېږه** :- ( کې + ګَ / ژَ ) ( اس ، مو ، ج ـــ ږې ) هغه وتره زمکه يا پټے چې د اړولو يا کر دپاره تياره وي.

**کېږه** :- ( کې + ګ / ژ ) ( فعل ) د کېدل مصدر نه د امر استمراري فعل.

**کېږۍ** :- ( کې + ګ / ژ + ی ) ( فعل ) د ,, کېدل ،، مصدر نه حال فعل ( جمع مخاطب ).

**کېږي** :- ( کې + ګ / ژي ) ( فعل ) د ,, کېدل ،، مصدر نه د حال فعل.

**کېږے** :- ( کې + ګ / ژے ) ( فعل )د ,, کېدل ،، مصدر نه د حال فعل. ( واحد مخاطب ).

**کېس** :- ( کې + س ) ( اس ، مذ ) عزت ، ابرو ، پرده.

ـــــ **دې کم شه** :- ( جمله ) ښېره ده. عزت د کم شه. بې عزته شې.

**کېس** :- ( کې + س ) ( انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) (۱) مقدمــه ، معاملــه ، قضيه ، جګړه واقعه (۲) بکس وړوکے ډبلے ، صندوقچه (۳) چاپــه خانه کښې غــه فريم (چوکاټ) چې په کښې حرفونه يو ځاے کوي . سانچه (۴) د لاحقې په طور نورو الفاظو سره استعمالېږي.

ـــــ **جوړول، په چا** :- مقدمه جوړول ، په عدالت کښې دعوٰی دائر کول.

**کېس** :- ( کے + س )( اسم ، مؤ ) وړوکے ډبلے چې څۀ څيز په کښې اېښودلے شي.

**سګرېټ** ـــــ :- ( س + ګ + ر + ټ ـــــ ) ( انګ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د سګرېټو د کښېښودلو ډبلے.

**سوټ** ـــــ :- ( سُو + ټ ـــ ) ( انګ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) هغه ورکوټے بکس چې سوټ (کوټ پتلون ) يا نورې جامې وغېره په کښې کښېښودے شي.

**کېسر** :- ( کې + س + ر ) ( اس ، مذ ) (۱) يو بيماري ده. هغه سړے چې تود سوړ شي او خولۀ ئې بنده شي. (۲) فالج ، ( په ځينو علاقو کښې ) (۳) د څاروو زکام. چې د بدن خوږ ځاے (زخم) ناسور شي هغې ته هم کېسر وائي.

ـــ **کېدل** :- د کېسر بيماري کېدل ، زکام وهل ، خولې بندېدل ، تود سوړ کېدل

**کېسه** :- ( کې + سَ ) ( ف ، اس ، مو ، ج ـــ ې ) کڅوړه ، د روپــو پيســو کڅوړه هميانۍ ، کيڅۍ.

ـــــ **بر** :- ( ـــــ ب + ر ) ( ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه ) ګنړ کپ ، ګنډ کپ

ـــــ **بري** :- ( ـــــ ب + ري ) ( ف تر ، اس ، مو )ګنړ کپي ، ګنډ کپي ، جيب تراشي.

**کېسه** :- ( کې + سَ ) د ,, قصه ،، بدل شکل دے. ( و ـــــ قصه )

**دا څۀ** ـــــ **ده** ؟ ( جمله ) دا څۀ حال دے. دا څۀ واقعه ده.

**کېسه** :- ( کې + سَ ) ( اس ، مو ، ج ـــــ ې ) کوال ، کودالۍ.

**کېسه** :- ( کې + سَ ) ( اس ، مو ، ج ـــــ ې ) کېلا ( مشهوره مېوه ).

**کېسي** :- ( کې + سي ) ( صف )د قيسي بدل شکل دے. (۱) د زرد الــو يــو قسم (۲) قېس تــه منسوب ، چې د پښتنو د روايتي مورث اعلٰی نوم ګڼلے شي. قيس عبدالرشيد.

**کيسي** :- ( کې + سي ) ( اس ، مذ )د منډتے يو قسم دے. يو قسم زرد الو.

**کېسينو** :- ( کے + سي + نو ) ( اس ، مذ ) د لوبو او وخت تېرې ځاے ، کازينو

**کيسۍ** :- ( کي + س + ی ) ( اس ، مو ) د قصۍ بدل شکل. وړه قصه ، قصه ګوټي ، افسانه.

**کيسۍ** :- ( کي + س + ی ) ( اس ، مو ) اړ ، چيستان.

ـــــ **وراچول** :- اړ اچول ، چيستان ويل.

**کيسے** :- ( کي + سے ) (۱) د ,, کيسه ،، جمع ده. (۲) د ,,کيسه ،، اضافي او مجروري وغېره ( متغير ) شکل.

**د** ـــــ **غر** :- ( د ـــــ غ + ر ) د کسے غر ، د پښتونخوا مشهور غر.

**کېش** :- ( کے + ش ) ( انګ ، اس ، مذ ) نغد رقم ، نغدې پيسې ټکې.

ـــــ **بُک** :- ( ـــــ ب + ک ) ( انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) هغه کتاب په کوم کښې چې د يوې ادارې د رقوماتو د ورکړې راکړې حساب ساتلے شي.

ـــــ **کول** :- نغدول ، لکه چېک کېش کول.

**کېش** :- ( کے + ش )( ف ، اس ، مذ )(۱) مــذهب ، ديــن ، عقيــده ، ګروهــه (۲) عادت ، خصلت ، طور طريقه روش.

**کېش** :- (کے + ش )( ف ، لاحقه ) د فارسي لاحقــه ده ـ چې نــورو الفاظو ســره راځي ـ او د دين مذهب خوي عادت معنې ورکوي. لکه : وفاکېش و جفاکېش.

**کېش** :- (کے + ش )(ف ، اس ، مــذ ، ج ـــــ ونــه ) منــډ ے ، د غشــو د کښېښودو څيز

غشے چې کــوږ وي يــا عېب ژن وي

ځاے ئې په کېش کښې کله سودمن وي ( خوشحال )

**کېښ** :- ( کې + ښ )( اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) یو وړوکی څادر ، چې عموماً په اوږو اچولی شي.

**ـــــ باقي** :- ( ـــــ با + قي ) ( ف تر ، اس ، مو ) کېښ اودنه ، لنډي څادرونه اودنه

**کیش** :- ( کي + ش )( اس ، صوت ) د چرګو یا د مرغو مارغانو د شړلو اواز ، شي.

**کیشپ** :- ( کي + ش + پ ) ( اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) شمشتۍ ،سکو ،کاسه ګړب ، کشپ

**کیشتګ کیشتګ** :- ( کي + ش + ت+ګ+ کي+ ش+ت+ګ ) ( اس ، صوت ) هغه اواز چې غواړې یا ساڼه له په غوا د ختلو د تحریص دپاره وښکلې شي.

**کیشک** :- ( کي + ش + ک ) ( اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) پهره ( ورکول ) څوکیداري ، د کلي څوکیداري کول.

**کیشتکارل** :- ( کي + ش + کا + ر + ل ) ( مص ) سپي په چا حملې دپاره پارول، شکارل.

**کیشکره** :- ( کي + ش + ک + رَ ) ( اس ، مو ، ج ـــــ رې ) یو قسم مرغۍ ده ،خړ رنګې کیږکه هککه ، ( غوښنه ئې ډېره خوږه وي ).

**کېشو** :- ( کې + شو ) ( اس ، مذ ، ج ـــــ ګان ) شمشتۍ ، کېشپ.

**کېشور** :- ( کې + شو + ر ) ( اس ، مذ ) یو قسم پشم دار چینجی.

**کېشیر** :- ( کې + شي + ي + ر )( انګ تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان ) په بینک یا بل کوم دفتر کښې د پیسو ټکو د ورکړې او اخیستلو کار کوونکی ، خزانچي ، خزانه دار.

**کېشینو** :- ( کې + شي + نو ) ( انګ ، اس ، مذ ) د پټو یو ډول لوبه.

**کېښ** :- ( کې + خ / ش ) ( فعل ) د „ کښېښودل ،، مصدر نه د ماضي فعل.

**کېښت** :- ( کې + خ / ش + ت )( اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) کښېوتنه ، مقابله ، په مقابله کښې ټینګار.

چې د غلـهٔ مېړانه تېښت ده
ستا مېړانه اوس د کېښت ده ( صدر خان )

**کېښکري** :- ( کې + خ / ش + ک + ري ) ( اس ، جم )(۱) د ډوډۍ وړې وړې ریزې ، د ډوډۍ ټکړې.(۲) وریت کړې ګډ ، ګکرې . جزغاله.

**کېښکل** :- ( کې + خ / ش + ک + ل )( مص )( و ـــــ کېمنډل )

**کښېښود** :- ( کې + خو / شو + د )( فعل ) د „ کښېښودل ،، مصدر نه د ماضي فعل.

**کښېښودل** :- ( کې + خو / شو + د + ل )( مص ) ریږدل ، ږدل.

**کېښه** :- ( کې + خ / شَ )( اس ، مو ، ج ـــــ ښې ) ښیښه ، شیشه.

**کېښې** :- ( کې + خې / شې ) ( اس ، مذ ، ج ـــــ ښي ) د ګبلډې چینجي . هغه چینجي چې د ماشومانو په کنه کښې پیدا کېږي.

**کیغاچ** :- ( کي + غا + چ )( اس ، مذ ) د یوې کولو یو انداز دے . چې پټې د یو ګوټ نه بل ګوټ ته کیله بیائي.

**کېف** :- ( کې + ف )( ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) خوند ، لطف ، مزه ، سرور.

**کېفر** :- ( کې + ف + ر )( ف ، اس ، مذ ) د بدکار نتیجه ، د بد کار بدل یا سزا.

**ـــــ کردار** :- ( ـــــ ک + ر + دا + ر ) ( ف تر ، اس ، مذ ) د کردار یا د عمل سزا.

**کېفي** :- ( کې + في ) ( ع ، صف ) سرور واله ، په لطف کښې ، په خمار کښې ، په نشه کښې ، سرشار ، مخمور ، عیاش.

**کېفي** :- ( کې + في ) ( عف ، تر ، اس ) هغه چې کېفیت ، ښۀ والي بد والي سره تعلق لري. لکه : کېفي تغیرات

**کېفي** :- ( کې + في )

**کېفے** :- ( کې + فے )( اس ظر )(۱) هغه ځاے چې چې کافي چائې وغیره څښلی شي . کافي هاوس.(۲) رستوران ، رستاورنټ ، رستورنټ.

**کېفیت** :- ( کې + فـي + ي + ت )( ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه )(۱) حالت و څۀ رنګوالے ، څنګ والے (۲) حال ، احوال (۳) خوند ، مزه ، لطف.

**ـــــ لیکل** :- تحریري رپورټ لیکل او حال احوال وغیره په لیک کښې راوستل

**کېفیتي** :- ( کې + في + ي + تي ) کېفي او هغه چې حالت سره تعلق لري . هغه چې ښۀ والي سره تعلق.

**کېفټیریا** :- ( کې + فـي + ټي + ري + ریا )( انګ ، اس ، مذ ) رستوران ، رستاورنټ ، هغه ځاے چرته چې خلک د خوراک څښاک څیزونه په خپله را اخلي.

**کېک** :- ( کې + ک )( انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) چایو سره د خوراک یو غټه غونډه ډوډۍ شان چې د مېدې ، اګو ، خوږو او کچو غوړو نه جوړولے او په تنور کښې پخولے شي . ځینې په کښې سره مېوه او څۀ مغزیات هم ورګډوي.

**کیک** :- ( کي + ک )( اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) ( وردګ ) کتمل ، مونګڼ.

**کیکار** :- ( کي + کا + ر )( اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) د سرو مچو ګګ ، د ډنبرو ګګ.

**کیکاوس** :- ( کي + کا + ؤ + س )( ف ، اس ) د ایران یو مشهور بادشاه د کوم سپه سالار چې رستم بن زرل وۀ . دے ټول عمر د افراسیاب سره په جنګ وۀ . د دۀ نه پس د هغۀ نمسے کیخسرو په تخت کښېناستو.

د دنیا رفعت وفا لـه هېچا نۀ کا
که دارا او کېکاوۀس او کېقباد شي ( حافظ )

**کیکته** :- ( کي + ک + تَ )( اس ، مو ، ج ـــــ تې ) د یوې لوبې نوم دے.

وعارف تـه واړه لوبې دي د وړکیو
لوے که تل د دنیا کار کا کم کیکتے ( سکندر خان )

**کیکر** :- ( کي + ک + ر )

**کیکړ** :- ( کي + ک + ړ )( اس ، مذ ، ج ـــــ ان ) مشهوره ازغنه ( اغزنه ) ونه ، چې لوے اوږدۀ اوږدۀ ازغي ( اغزي ) لري.

**کیکړے** :- ( کي + ک + ړے )( و ـــــ کوکرے )

**کېکښل** :- ( کې + ک + خ / ش + ل )( و ـــــ کېمنډل )

**کیکوړے** :- ( کي + کو + ړے ) ( اس ، مذ ، ج ـــــ ړي ) (۱) ککوړے ، وړه ډوډۍ چې په اخره کښې لږ شان اوړۀ پاتې شي . نو وړه شان ډوډۍ ترې پخه کړي.(۲) کلچه ، وړه خوږه ډوډۍ (۳) ټکلۍ ، ریکاړه ، ټیکوله ( اورکزي )

**کېکه** :- ( کې + کَ )( اس ، مو ، ج ـــــ کې ) ورګه ، ورژه ، زغانځه.

**ـــــ په پرتاګه ( پرتوګ ) کښې لوئېدل** :- په پرتوګ کښې ورږه ورننوتل . کنایةً داسې سړے چې خلک ترې تنګ وي د دغې سړي په راتلو ټول مجلس تنګ او ناقلاره شي.

**کې کې** :- ( کې + کې ) ( اس ، صوت ) د خوشحالۍ چغه.

مست یم په سر کښې مستي دي لرم
چې پـه نشـا ئې کې کې کې کې لرم ( خوشحال )

**کېل** :- ( کې + ل ) ( اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) راز و نیاز ، لوبې

مشترې زهره له حیا نه ورته ناڅي
محبوبا چې د یارانو سره کېل کا ( نعیم )

( غالباً چې د هندي „ کهېل ،، بدل شکل دے )

**کېل** :- ( کے + ل ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) رغلے وغیره یو پیمانه ، وزن.

غافلان به ئې ارمان که وار ئې تېر وي

و هــر چــا عمل بــه وګــورې په کېل (خواجه محمد بنګش)

**کېل** :- ( کي + ل ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) د یوې جوړه کړې کربنه ، کیله

**کېلا** :- ( کے + لَ ) (هـ ، اس ، مؤ ، ج ــــ لې ) مشهوره مېوه او د دغې مېوې ونه. چې ډېرې پلنې پلنې پاڼې لري. تنه ئې نه وي.

**کېلـري** :- ( کـے + ل + ري ) (انـګ ، اس ، مـو ، ج ــــ نـي / انـي ) د خـوراک د څیزونو ، بدن ته د طاقت ورکولو یوه اکائي ده.

**کېلسیم** :- ( کـے + ل + سـي + ي + م ) (انـګ ، اس ، جـم ) یـو دوائـي چـې پـه مختلفو څیزونو کښې موجوده وي. کېلشیم.

**کېلک** :- ( کي + ل + ک ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) جوغلنډے ، هغـه لرګے کـوم چې د قلبې په جغ (ژغ) کښې ورکولے شي.

**کېلـک** :- ( کـے + ل + ک ) (اس ، مـذ ، ج ــــ ونـه ) هغـه تسمه چـې د تـورې غلاف ، یا حمائل شریف سره لګېدلے وي.

**کېلکـولېټر** :- ( کـے + ل + کـو + لـې + ټ + ر ) (انـګ ، اس ، مـذ ) (۱) شـمار کوونکے (۲) یوه آلـه ده ـ چـې د هغـې پـه ذریعـه د اعدادو جمع تفریق ، ضرب تقسیم وغیره کولے شي. د حساب مشین ، ماشین.

**کېلنډر** :- ( کـے + ل + ن + ډ + ر ) (انګ ، اس ، مـذ ، ج ــــ ونـه ) جنتري ، هغـه نقشه چې په کښې د کال میاشتې تاریخونه او ورځې لیکلې وي.

**کېنډړه** :- ( کي + ن + د + ړَ ) (اس ، مو ، ج ــــ ړې ) کودړ ، خرڅوړے.

**کېندل** :- ( کي + ن + د + ل ) (مص ) کنستل ، کینل.

**کېندنه** :- ( کي + ن + د + نَ ) (حمص ) کنستنه ، کندنه.

**کېندے** :- ( کي + ن + د ے ) (اس ، مذ ، ج ــــ دي ) کودالے ، کدالے.

**کېنډۍ** :- ( کي + ن + ډ + ۍ ) (اس ، مو ) قالب.

**کېنسر** :- ( کې + ن + س + ر ) (انګ ، اس ، ج ) سرطان ، یو بیماري ده ـ ناوړه ناروغتیا ده.

**کېنسل** :- ( کې + ن + س + ل ) فسخ کول ، باطلول پروګرام وغېـره ، فسـخ کول

**کینکـرے** :- ( کـي + ن + ک + رے ) (اس ، مـذ ، ج ــــ ري ) (کـاکړ ) باجري ، واړه کاڼي چې د عمارتونو په مساله کښې پکارېږي ـ کرکانډے کرېږ ، (هـ ــــ کنکر )

**کېنکه** :- ( کي + ن + کَ ) (اس ، مو ، ج ــــ کې ) کنه ، د سپږې تخم

**کېنړ** :- ( کې + ن + ړ ) (اس ، ظر ) ګڅ ، د ښي په مقابله کښې.

**ــــ لاسے** :- ( ــــ لا + سے ) (پ.تر.صف ، اس ، مذ ، ج ــ سي ) هغـه سړے چې د ښي لاس کارونه په کېنړ (ګڅ) لاس کوي. ګڅے.

**کېنړوال** :- ( کې + ن + ړ + وا + ل ) (اس ، مـذ ، ج ـ ان ) جـولا ، اودونکـے ، وېدونکے.

**کېنـه** :- (کې + ن + ړَ ) د ,, کېنړ ،، مؤنث صیغه ګڅـه ، د ,, ښي ،، په مقابلـه کښې

**ــــ سترګه رپېدل** :- دا بد شګون دے.

بیا مې کینه سترګه لاندې باندې رپي

مګر بیا مې زړهٔ یارۍ وتــه خبر دے (خوشحال)

**کېنې** :- ( کې + ن + ړے ) (صف ، مذ ، مو ــــ ئ ) و ــــ کېنړ لاسے.

**کېنې** :- ( کې + ن + ړے ) (اس ، مذ ) یو قسم ځنګلي بوټے.

**کیلو** :- ( کي + لو ) (انګ ، فر ، اس ، مذ ) د وزن یوه پیمانه ده کیلو ګرام ( یو زر ګرامه ).

**ــــ ګرام** :- ( ــــ ګ + را + م )

**ــــ ګرم** :- ( ــــ ګ + ر + م ) (انګ ، تر ، اس ، مذ ) د وزن یو پیمانه ده ـ چې د یو زر ګرامه هومره وي.

**ــــ میټر** :- ( ــــ مي + ټ + ر ) (انګ ، اس ، مذ ) د کچ پیمانه ده ـ چې د یو زر ( ۱۰۰۰ ) میټرونو هومره وي.

**ــــ واټ** :- ( ــــ وا + ټ ) (انګ ، تر ، اس ، مذ ) یو زر واټـه ، هغـه بجلي چې مقدار ئې د یو زر واټ هومره وي. (واټ ، بجلۍ یو پیمانه ده ).

**کېلول** :- (کے + ل + و + ل ) (مص ) (۱) صفا کول ، په چج کول ، چج سره دانې غله وغیره صفا کول. (۲) وریژې یا دال وغیره په اوبو کښې وینځلو سره صفا کول.

**کېلونه** :- ( کے + ل + و + نَ ) (حمص ) (۱) دانې غله وغیره په چج صفا کونه (۲) دال وریژې وغیره وینځلو سره صفا کونه.

**کیله** :- ( کي + لَ ) (اس ، مو ، ج ــــ لې ) (۱) کربنه ، خط (۲) هغه کربنه چې یوې سره په پټي کښې جوړه شي.

**کېله** :- ( کې + لَ ) (اس ، مو ، ج ــــ لې ) قلعه ، مضبوطه قلا.

**کیلۍ** :- ( کي + ل + ۍ ) (اس ، مو ) کُنجي ، کلید.

**کیلے** :- ( کے + لے ) (اس ، مذ ، ج ــــ لي ) خرے ، لرسولے ، کلے ، مېخ.

**کیلیمانجارو** :- ( کي + ل + ما + ن + جا + رو ) (اس ، مع ) د یو غر نوم دے ـ د دغې غر څوکې ته هم وائي.

**کېمپ** :- ( کي + م + پ ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) (۱) هغه ځاے چې لښکر عارضي طور سره تمبوان وغېره ولګوي ـ عارضي لشکرګاه ـ (۲) عارضي طور سره ( په تمبوانو کښې ) د اېساربدلو ځاے.

**ــــ لګول** :- د لښکر عارضي طور سره استوګنه اختیارول ـ هغـه ځاے چېرته چې تمبوان ولګولے شي.

**کېمپس** :- ( کي + م + پ + س ) (انګ ، اس ، مذ ) د یونیورستۍ ( دانشګاه یا

پوهنتون) احاطه.

**کېمچ** :- ( کي + م + ج ) (اس ، مـذ ، ج ــــ ونه ) (۱) کېجم ، هغـه نمده یـا لمسے (لونځے) چې د اس د زین د لاندې اچولے شي ـ (۲) کوم مضبوط څیز چې بخترونه ترې جوړولے شي.

د آه غشے مې اثـر په رقیب نه کا

ده محکم بختر اغوستے کېمجي (خواجه محمد )

**کېمخ** :- ( کي + م + خ )

**کېمخت** :- ( کي + م + خ + ت ) (اس ، مذ ) ساغري څرمن ، د تنجے څرمن.

**کېمخت** :- ( کي + م + خ + ت ) (ف ، اس ، مـذ ) د ګور خر یا د اس دانه داره څرمن چې په خاص طریقه ئې د باغت کولے شي ـ او پښې یا د تورې غلاف

وغیره ترې جوړولے شي. ساغرې.

**کېمـرون** :- ( کـي + م + رو + ن ) (اس ، مـع ) د یـو ملـک نـوم دے ـ چـې دارالحکومت ئې ,, پاونډے ،، دے.

**کېمره** :- (کي + م + رَ ) (انګ ، اس ، مو ، ج ــــ رې ) هغه آله چې تصویرونه ( عکسونه) پرې اخستے شي.

**کېمسـټ** :- ( کـي + م + س + ټ ) (انـګ ، تـر ، اس ، مـذ ، ج ــــ ان ) (۱) د کېمیا د علم پوهان ، د کېمیا د علم عالم ، (۲) هغه دوا فروش تـه هم وائي څوک چې کېمیکل داروګان خرڅولے شي.

**کېمسټري** :- ( کي + م + س + ټ + ري ) (انګ ، تر ، اس ، مو ) د کېمیا علم هغه علم چې د څیزونو په ترکیباتو او تغیراتو وغیره په حقله په کښې بحث او خبرې کېږي.

**کېمنډل** :- ( کي + م + ن + ډ + ل )(مص)(۱) (په زور) ورننه ايستل ، په زور سره څهٔ څيز په کوم ځاے کښې ځايول (۲) چاپي کول ، په بدن زور کول۔

**کيموس** :- ( کي + مو + س ) (يو ، اس ، مذ ) يو قسم رقيقه ماده ده چې په ګېډه کښې د خوراک د هضمېدو په وخت پيدا کېږي۔

**کېموفلاژ** :- ( کي + مو + ف =لا+ ژ ) (انګ ، اس ، مذ ) هغه طريقه يا وسيله چې د دښمن د غولولو دپاره جوړه کړے شي۔ بڼه اړونه۔

**کېمه** :- ( کے + مَ )(اس ، مو ، ج ـــ ې) د څرمنې نه جوړ شوے د تور تېل ډبلے۔

**کيميا** :- ( کي + م + يا ) (يو ، اس ، مو ) (۱) يو پخوانے تصور ، چې د مختلفو معمولي داتونو (لکه تانبه وغېره) نه په يو خاص هنر سره سرهٔ زر يا سپين زر جوړېدے شي۔ دا محض دوکه وه۔ ځکه د کيميا لفظ د دوکې په معنیٰ کښې هم استعمالېږي۔ (۲) کيمسټري ، هغه علم د څيزونو د خاصيت او د ماهيت علم (۳) تصرف ، د پير مرشد نظر (۴) (شعر) کامل عشق (۵) ډېر زيات فائده مند څيز ، اکسير

که نظر د دلبر وشي په ما باندې
د مئين نظر کيميا د کيمياګر ده (خواجه محمد بنګش)

**ـــ بوټي کېدل** :- کنايه ، غېبېدل ، ورکېدل ، ښخي نهٔ بيامونډلے کېدل ، د مرغۍ پۍ کېدل ، عنقا کېدل۔

**ـــ ګر** :- (ـــ ګ + ر ) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) د کيميا د علم ماهر ، سرهٔ زر يا سپين زر جوړوونکے

کيمياګر د کيميا په طلب ګرځي
همدمي د عالمانو ده کيميا (رحمان بابا)

**ـــ ګري** :- (ـــ ګ + ري )(ف تر ، اس ، مو ) د کيميا علم ، د سرو زرو سپينو زرو د جوړولو علم۔

**ـــ وي** :- (ـــ و + ي )(ف ، صف ، مو )کيميا سره تعلق لرونکے۔

**ـــ سره** :- (ـــ س + رَ ) (عپ تر ، اس ، مو ، ج ـــ رې) هغه سرهٔ چې د مشين په ذريعه په کيمياوي عمل جوړ شوي وي۔ مصنوعي سرهٔ ۔

**کېميکل** :- ( کے + مي + ک + ل ) (انګ ، صف)کيمياوي ، کيمياوي ماده ۔ هغه څيز د کيمياوي عملياتو په نتيجه کښې په لاس راشي۔

**کين** :- ( کي + ن ) (اس ، مذ ) د ,, کينه ،، لنډيز شکل دے۔

**کېناستل** :- ( کے + نا + س + ت + ل ) (مص) د ولاړېدل ضد ، ف: نشستن (نور الفاظ د ,, کښېناستل ،، ترلاندې وګورئ)۔

**کېنال** :- ( کے + نا + ل ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) لوے نهر ، نهر۔

**کېناوهٔ** :- ( کے + نا + ؤ )(فعل) د ,, کېنول ،، مصدر نه د ماضي فعل کښېناوهٔ۔ کښېنوهٔ

**کينبرا** :- ( کے + ن + ب + را ) (اس ، مع) د اسټريليا دارالحکومت۔

**کېنټين** :- ( کے + ن + ټي + ن )(انګ ، اس ، مذ ،ج ـــ ونه) د فوځيانو مرکز ، کارخانه ، اداره کښې هغه دوکان چې په کښې د خوراک څښاک او نور څيزونه خرڅولے شي۔

**کېنج** :- ( کے + ن + ج ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ناز نخره ، ادا ، کږځ قبنج۔

**کينج** :- ( کي + ن + ج ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه)کُنج ، ګوټ ، زاويه۔

**کيند** :- ( کي + ن + د ) (فعل) د ,, کيندل ،، مصدر د ماضي فعل ، کنستهٔ۔

**کينکه** :- ( کي + ن + کَ )(و ـــ کنے)

**کينګار** :- ( کي + ن + ګا + ر )(اس ، مذ ، ج ـونه) عرض ، درخواست ، التماس

**کينګارے** :- ( کي + ن + ګا + رے )(اس ، مذ ) شورغوغا ، فرياد ، کونګارے۔

**کينګرۍ** :- ( کي + ن + ګ + ر = ی )(اس ، مو ) د کاڼي ټوټه۔

**کينل** :- ( کي + ن + ل ) (مص مت) کنستل ، کيندل، کندل۔

**کيننه** :- ( کي + ن + + نَ )(حمص) کنستنه ، کيندنه، کندنه۔

**کينودے** :- ( کي + نو + دے )(اس ، مذ ، ج ـــ دي) لوے نقب ،لوے کنډر ، لوے کنستلے ځاے۔

**کېنوس** :- ( کے + ن + و + س )(انګ ، اس ، مذ ) يو قسم غټه کپړه ، ترپاړ ، چې تصويرونه پرې جوړولے شي۔

**کېنول** :- ( کے + ن + و + ل ) (مص) د اودرول ضد ، کښېنول۔

**کينه** :- ( کي + نَ )(ف ، اس ، مو ، ج ـــ نې) بُغض ، حسد ، دښمني ، کين ، ميرځي ، بدي ، ميرځمني ، اروړه ، رخه ، غچ ، غوړ۔

**ـــ توز** :- (ـــ تو + ز ) (و ـــ کينه ور )

**ـــ جو** :- (ـــ جو )(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ يه) کينه لټوونکے ، د بدل د اخستلو کوښښ کوونکے۔

**ـــ جوئي** :- (ـــ جو + ئي ) (ف تر ، اس ، مو ) کينه لټونه ، د بدل اخستلو کوښښ کونه ، په زړهٔ کښې دښمني ساتنه۔

**ـــ ساتل په زړهٔ کښې** :- په زړه کښې دښمني لرل۔ په زړهٔ کښې د چا خلاف بغض لرل۔

**ـــ کشکه** :- (ـــ ک + ش + کَ ) (پ تر ، صف) حسد کوونکے ، حاسد ۔

**ـــ کول** :- بغض کول۔

**کينه کول ( په چا )**:- د چا سره حسد او بُغض ساتل۔

تهٔ ناحق په ما کينه کړې کينه ناکه
په کينه به ائينه نهٔ کړې تهٔ پاکه (رحمان بابا)

**ـــ ګر** :- (ـــ ګَ / ګ + ر ) (صف ، مذ ، ج ـه)کينه جوړوونکے ،کينه ور ، کينه ناک۔

**ـــ لرل** :- بُغض لرل ، دښمني لرل ، حسد لرل غچ کښل ، کسات اخيستل۔

**ـــ ور** :- (ـــ و + ر ) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) کينه لرونکے ، بغض لرونکے ، حسد کوونکے ، په زړهٔ کښې بغض لرونکے ، رخي۔

**کينه** :- ( کي + نَ ) (اس ، مو ، ج ـــ نې) کنه ، د سپږو بچ۔

**کښه** :- ( کې + نَ )(فعل )(۱) د کښناستل مصدر نه د امر فعل کښېنه ۔ (۲) طنزاً يا قهراً ، په قلار شه۔ غلے شه ، تهٔ په غلطه ئې ، وغېره۔

**کينيا** :- ( کي + ني + يا ) (اس ، مع) د افريقې د يو ملک نوم۔ دارالحکومت ئې ,, نېروبي ،، دے۔

**کېنېډا** :- ( کې + نې + ډا ) (اس مع) د شمالي امريکې قطب ته يو لوے ملک دارالحکومت ئې ,,اوټاوا ،، دے۔

**کېواتهٔ** :- ( کې + وا + ت ) (حمص) د کېوتل مصدر نه حاصل مصدر ۔ جګړه کونه ، په خپله کښې نښتنه۔ (و ـــ کښېواتهٔ)

**کېواړ** :- ( کې + وا + ړ )(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) جرنده ، جندره ، قلف ، قفل۔

**کېوان** :- ( کے + وا + ن ) (ف ، اس ، مذ ) (۱) زحل ستورے ، زحل سياره (۲) پخوا دا عقيده وه چې زحل ستورے په اووم اسمان کښې دے ۔ ځکه په دې نسبت اووم اسمان ته هم وائي۔

**کيوبا** :- (ک + يو + با )(اس ، مع) امريکې ته نزدې د يوې جزيرې نوم دے ۔ دارالحکومت ئې ,, هوانا ،، دے۔

**کېوتل** :- ( کے + و + ت + ل ) (مص) په خپله کښې په جګړه کېدل ، مشت و ګرېوان کېدل۔

**کېوتنه** :- ( کے + و + ت + نَ ) (حمص)په خپله کښې نښتنه۔ په خپله کښې په جنګ جګړه کېدنه ، مشت ګرېوان کېدنه ، په مقابله کېدنه ۔(و ـــ

کنبېوتنه).

**کیوړه** :- (ک + یو + ړَ) (هـ، اس، مو، ج ـــــ ړې) یوه ونه او د هغې د ګل نوم چې ډېر خوشبویه وي. او خوشبوداره عرقونه ترې جوړولے شي. او په شربتونو وغېره کنبې پکارولے شي.

**کیـــوزون** :- (ک + یـــو + زو + ن) (اس، مـــع) د فلپـــائن (یـــا فلپـــین) دارالحکومت دے.

**کېوزي** :- (کے + وو + زي)

**کېوځي** :- (کے + وو + (د) زي) (**فعل**) د ,, کېوتل ،، مصدر نه د حال فعل (و ــــ کنبېووزي).

**کیو شو** :- (ک + یو + شو) (اس، مع) د کیو شو جزیره.

**کېول** :- (کې + و + ل) (اس، مذ، ج ـــــ ونه) د یو ګل نوم دے. چې بوټے ئې اغزن وي.

د کیـــول پـــه خـــار بلبل سینه پاره کا
مرګ له وصله سره دۀ ته پسندید شي (حافظ)

**کے** :- (ک + ے) (**فعل**) د ,, کول ،، مصدر نه د حال فعل، کوي.

**کیے** :- (ک + یے) (اس، مذ، ج ـــــ یي) کهے، هغه اوږده ګیا چې نا ړئې سخت او لکه د نل یا سرغشي بند بند وي. قلمونه ترې جوړولے شي. او په څپرونو او چتونو هم اچولے شي.

**کېئستل** :- (کې + ي + س + ت + ل)

**کېیستل**:- (کې + ي + س + ت + ل) (و ـــ کے ابستل) (و ـــ کنبے ایستل).

◈◈◈

# ګ

**ګ** :- (ګا + ف) (اس ، -ج ـــــ ونه) د پښتو درې دېرشم توری ، د فارسۍ شپږ ویشتم د اردو نهه ویشتم. په عربۍ ژبه کښې اصلاً دا توری نشته (خو اوس په ځینو ملکونو کښې د جیم په ځای ځینې وخت ګاف استعمالېږي. لکه جمال الناصر په ځای ګمال الناصر وائي) د جمل په حساب کښې د "ک" قیمت لري یعنې شل (۲۰) په فارسۍ اردو وغېره ژبو په لیک کښې "ک" سره یو کش زیاتولی شي او "ګ" لیکلی شي. په پښتو کښې د کش سره هم درست دی. خو عام طور سره کش د لاندې یوه حلقه یا کونډه لګولی شي او "ګ" لیکلی شي. ځینې وخت دا حلقه یا کونډه لاندې هم ولیکلی شي. یعنې "ګ" ګاف ځینې وخت غ سره بدلېږي. کوم خلک چې د ف تلفظ نۀ کوي هغوي ورته "ګاف" وائي

**ګا** :- (ګا) د ګاه مخفف دی. کله

ګـا اهـونـه کـه ژړا کـړې

که وئیل تاؤدۀ ساړۀ کړې (حمید)

**ګا** :- (ګا) (اس مذ) د موسیقۍ د اووۀ سرونو کښې دریم سُر.

**ګابڅ** :- (ګا + ب+ څْ) (صف ، مذ ، مؤ ـ ه) ویرووںکی ، خوفناک.

**ګاپ** :- (ګا + پ) (و ـــ ګاف).

**ګات** :- (ګا + ت) (اس ، مذ) محصول ، ګمرکي محصول.

**په ـــــ باندې ایسارول** :- د کسټم په پوله ایسارول ، د حساب کتاب په موقع ایسارول.

او چـې دلـې یُـو یـو طلـب تـۀ د پنکـۍ اونـۀ کـړې

او پـه قیامـت بـه ئـې برکـات بانـدې حصـار کانـدې

(میا محمد علي ، ادبي ستوري، زړه پانګه)

**ګاترۍ** :- (ګا +ت + رَے / رَۍ) (اس ، مذ ، مؤ) لور ، د وښو یا د فصل د رېبلو اله.

**ګاتل** :- (ګا +ت + لْ) (مص) زخمي کول ، ژوبلول ، ګواتل.

**ګاتلے** :- (ګا +تَ +لَے) (اس ، مف ، ج ـ لي) زخمي، ژوبل (شوے).

**ګاتلونکے** :- (ګا +ت + لُو + نْ + کَے) (اس ، فا ، ج ـ کي) زخمي کوونکے ، ژوبلوونکے.

**ګاتمونے** :- (ګا +ت + مُو + نَے) (اس ، مذ ، ج ـ ني) اور لړونکے ، د اوسپنې یا د لرګي. (هغه لرګے یا سیخ چې په تنور کښې پرې اور لړلے او تازه کولے شي)

**ګاتنه** :- (ګا +ت + نَ) (حمص ، ج ، نې) زخمي کونه ، ژوبلونه.

**ګاتیار** :-(ګا +ت+ یا + رَ) (اس ، مذ ، ج ـ ان) زینونه جوړوونکے، زین ساز.

**ګاټ** :- (ګا +ټ) (اس ، ج ـ ونه) (۱) محصول ، د چونګي محصول (۲) ګټ ، لوے ګټ (۳) د تورې تېکے ، نیام (۴) دم کړے مزے چې په دم ورله غوټې ورکړې شوې وي. د ماشومانو یا د ناروغو مرۍ کښې اچولے شي. ګټ.

**ـــــ اخېستل** :- (ـــــ ا + خِ +سْ + ت+ لْ)

**ـــــ اغېشتل** :- (ـــــ ا+ غې+ شْ + ت + لْ) محصول اخېستل یا اغېشتل ، محصول وصولول.

**ـــــ بهاند** :- (ـــــ بَ + ها + ن + د) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـ ونه) د محصول (کسټم) افسر ، د ګمرک محصول اخېستونکے.

**ګاټ** :- (ګا +ټْ) (اس ، مذ ، ج ـ ونه) په هندۍ کښې د سیند غاړې (ګودر) ته وائي. موقع ، ځای.

**دوبي ـــــ** :- (دُو + بي ـــــ) (هـ ، اس ، مذ ، ج ـ ونه) د سیند یا د ولې هغه ځای چېرته چې دوبیان جامې وینځي.

**ګاټ** :- (ګا +ټ) (اس ، مؤ ، ج ـ ټي) ګټه ، تیږه ، کاڼے.

**ګاټلۍ** :- (ګا + ټْ + لَ + ی) (اس، مؤ) د ګاټلے تانیث ، وړوکے ګاټلے ، غوټه ، بنډل.

**ګاټلے** :- (ګا + ټ + لَے) [ اس ، مذ ،ج ـ لي) په کپړه کښې تړلے شوے سامان جامې وغېره. بنډل ، لویه غوټه.

**ګاټه** :- (ګا + ټَ) (اس ، مؤ ، ج ـ ټې) (۱) ټینګ مائع څیز (۲) د ولې وغېره اوچېدنه.

**ـــــ کول** :- (۱) ټینګول (مائع څیز لکه شربت وغېره) کلکول (۲) د ولې نهر وغېره اوچېدل (۳) کمے کول ، کمېدل.

**ګاټه** :- (ګا + ټَ) (اس ، مو ، ج ـ ټي) د سپیاکو لوے جوړ کړے ټوپ ، ګواټه.

**ګاټه** :- (ګا + ټَ) (اس ، مو ، ج ـ ټې) ګټه ، نفع ، فائده.

**ګاټي** :- (ګا + ټِيْ) (اس ، مذ ، ج ـ ان) (۱) محصول وصولوونکے، محصولچي ، (۲) د ګاټے جمع ده. ګاټي ، د سترګو مړدکي. د میرګاټي د لوبې غونډ ټیکري.

**ګاټۍ** :- (ګا + ټَ + ی) (اس ، مؤ) (۱) ګیټۍ د چیلم (۲) خاورینه ګولۍ.

**ګاټے** :- (ګا + ټَے) (اس ، مذ ، ج ـ ټي) محصول اخېستونکے ، محصولچي ، ګاټي هم ورته وائي.

**ګاټے** :- (ګا + ټَے) (اس ، مذ، ج ـ ټي) (۱) د سترګو مړدکے (۲) ګیټۍ ، د چیلم په ټوپۍ کښې د اچولو وړه شان لوټه (۳) د میرګاټي د لوبې یو غونډ ټیکرے ، میرګاټے.

**ګاځره** :-(ګا + (د) ز + رَ) (اس ، مړ ، ج ـ ې) مشهوره مېوه ، ګازره.

**ګاچ** :- (ګا + چ) (اس ، مذ، ج ـ ونه) (۱) د ګډو بزو د رمې د شپې ځای ، چې شپول ترې چاپېره وي. پنډ غالے ، (۲) یو قسم نرے مهین ټوکے (ځینې په کښې ګلدار هم وي) چې عموماً لوپټې ترې جوړولے شي.

**ګاڅ** :- (ګا + (ت) س) (اس ، جم) غوښت ، ارزان.

**ګادړ** :-(ګا+د+ړْ)(صف ، مذ ، مؤ ـ ه) بدشکل ، بد قواره ، بدرنګ.

**ګادۍ** :- (ګا + دَ + ی) (اس ، مؤ) کُنه ، دبر ، مقعد.

**ګاډر** :- (ګا + ډ + رْ) (صف ، مذ ، مؤ ـ ه) بدشکله ، بې کاره سړے، تمبوس ، ټندو.

**ګاډر** :- (ګا + ډ + رْ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) د اوسپنې تیر ، د اوسپنې جوړ شوے بینش (انګ۔ ګرډر)۔

**ګاډو** :- (ګا+ډو) د ګاډۍ جمع مجروري شکل چې مغیره تورو سره راځي۔

**په ـــ رغړول** :- (محاوره) ډېر زیات دروغ وئیل، د حد نه زیاته مبالغه کول۔

**ګاډول** :- (ګا + ډو + ل) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) ګاټے ، د ټیکري وغېره نه جوړ شوے غونډ۔ چ پلیت ، د پایې په شان د ماشومانو د لوبو څیز۔

**ګاډولے** :- (ګا + ډو + لَے) (اس ، مذ ، ج ــ لي) ګډ وډے ، یو قسم خړ رنګې بوټے چې د غنمو په فصل کښې کېږي۔ وړې وړې دانې کوي۔

**ګاډے** :- (ګا + ډَے) (اس ، مذ ، ج ــ ډي) (۱) د رېل ګاډي مخفف (۲) موټر ، کار (۳) د سورلۍ څیز (۴) د مال د وړلو راوړلو رېړه یا چکړه

**ـــ چلول** :- ډرائیوري کول۔

**د اور ـــ** :- (دَ ، او + ر ـــ) (اس ، مذ ، ج ــ ي) رېل ګاډے (چې انجڼ ئې د اور په زور چلېږي) ګاډے۔

**رېل ـــ** :- (رې +ل ــ) هغه ګاډے چې په پاټلو (پټړو) باندې چلېږي۔

**ګاډي** :- (ګا +ډي) (۱) د ګاډے جمع (۲) د ګاډے مجروري شکل چې د مغره ؤ تورو سره راځي۔

**ـــ واله** :- (ـــ وا + لَ) (اس ، مذ ، مؤ ، ج) ګاډے (چکړه ، رېړه) چلوونکے ، د ګاډي (چکړې ، رېړې) خاوند۔

**د ـــ پاټلۍ** :- (ـــ پا + ټ + لَ + ۍ) رېل ، د اوسپنې هغه متوازي هوارې کړۍ چې د اور ګاډي پایې پرې ښوئېږي۔ د ګاډي پټړۍ۔

**د ـــ ټېسن** :- (ـــ ټې + س + نْ)

**د ـــ ټېشن** :- (ـــ ټې + ش + نْ)

**د ـــ سټېشن** :- (ـــ س + ټې + ش + نْ) د رېل ګاډي د اودرېدلو ځاے ، چېرته چې سورلۍ کوزېږي او خېژي ، رېلوے سټېشن۔

**ګاډېزه** :- (ګا +ډې + زَ) (صف ، مؤ ، ج ، زې) (۱) سره ګډ وډ شوي څیزونه ، (عموماً ګډ سره یو ځاے راځي یعنې ګډ ګاډېزه څیزونه) (۲) یو قسم ډوډۍ چې د مختلفو غلو د ګډو اوړو نه جوړه شوې وي۔

**ګاډي وانه** :- (ګا +ډي + وا + نَ) (اس، مؤ ، ج ــ نې) د ګاډي وران تانیث دے۔

**ګار** :- (ګا + ر) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) تاوان ، نقصان ، مصرف، خراب ، برباد ، ضائع۔

**ګار** :- (ګا + ر) (لاحقه ده) د فارسۍ لاحقه ده۔ په پښتو کښې هم استعمالېږي۔ اسم سره لګي۔ د کوونکي معنې ورکوي۔ لکه : ګناهګار ، نېستګار ، توبه ګار ، خدمتګار۔

**ګار** :- (ګا +ر) (صف ، مذ ، مؤ ــ ه) وران ، ویجاړ، تباه ، برباد۔

**ګار اج** :- (ګا + را + ج) (انګ ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) د ګېریج پښتو شکل دے۔ هغه لویه کوټه چې په کښې موټر وغېره ګاډي اودرولے شي۔ ګېراج۔

**ګاراز** :- (ګا + را + ز) (و ــ ګاراج)۔

**ګارت** :- (ګا + ر + تْ) (انګ ، اس) د انګرېزي د ګارډ بدل شکل دے۔

**ګارډ** :- (ګا +ر + ډ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ــ ان) (۱) محافظ ، حفاظت کوونکے ، بدګه ، ساتندوے (۲) د کوم لوے سړي محافظه دسته ، هغه سپاهیان چې د کوم سړي یا د ځاے د حفاظت دپاره مقرر وي۔

**ګاډي ـــ** :- (باډي ــ) (انګ اس ، مذ) هغه سپاهي یا د سپاهیانو دسته کومه چې د یو لوے افسر یا د بادشاه وغېره د ځان حفاظت کوي۔

**ګارډر** :- (ګا +ر + ډ + رْ) (انګ ، اس ، مج ــ ونه) د اوسپنې شهتیر

**ګارو** :- (ګا + رُو) (اس ، مذ) یو قسم بوټے دے چې ډېر ګڼ کېږي۔ سپین خوشبویه ګلونه کوي۔ په دارو کښې هم استعمالېږي۔

**ګاروټے** :- (ګا +رو + ټَے) (اس ، مذ ، ج ــ وټي) په باغ کښې د انګورانو یوه ټکړه۔

**ګارول** :- (ګا + رَ + و + لْ) (مص) نقصان رسول ، تاوان رسول ، ضائع کول ، نقصان کول۔

**ګارونه** :- (ګا + رَ + و + نَ) (-حمص) نقصان رسونه ، تاواني کونه۔ خرڅ کونه ، ضائع کونه۔

**ګاروونکے** :- (ګا + رَ + وُو + نْ + کَے) (اس ، فات ، ج ــ کي) نقصان کوونکے ، تاواني کوونکے ، لګوونکے ، ضائع کوونکے۔

**ګاره** :- (ګا +رَ) (اس ، مو ، ج ـــ رې) سخت کاڼے۔

**ګاره** :- (ګا +رَ) (اس ، مو ، ج ـــ ې) (۱) شګلنه او کاڼېزه زمکه (۲) هغه کاڼے چې په کښې شګه ګډه وي۔ (۳) سمڅ ، قدرتي غار (۴) ګره ، د ګنو وړې وړې ټوټې چې په زمکه کښې یو ځاے ښخې کړے شوي وي۔ (چې د کر په وخت بیا راوباسلے شي)۔

**ګاره** :- (ګا +رَ) (اس ، مو) د کاڼي په شان سختېدونکے ، کاګره۔

**ګاره** :- (ګا + رَ) (هـ ، اس) نرۍ خټه چې د خښتو د لګولو دپاره پکارولے شي۔

**ـــ جوړول** :- د عمارت دپاره نرۍ خټه جوړول۔

**ګاري** :- (ګا + رِي) (اس ، جم) کوپره ، نارېل۔

**ګاري** :- (ګا+رِي) (لاحقه) فارسي لاحقه ده۔ د اسمونو اخر ته لګي۔ د کولو، جوړولو وغېره معنې ورکوي۔ لکه : خدمتګاري ، ستمګاري۔

**ګارے بګارے** :- (ګا + رَے + بَ + ګا + رَے) (صف) شلېدلے پشلېدلے ، بېخي شلېدلے ، ریښې ریښې۔

**ـــ کول** :- څیرې ویرې کول ، بد بد شلول۔

**ګارې وارې** :- (ګا +رې + وا + رې) (پ ، تر ، صف) څیرې ویرې پاره پاره ، شلېدلے شلېدلے ، ریښې ریښې

د عصمت پرده زما شوه ګارې واورې
مشهور په مرد و زن یم زما ربه (بېدل)

**ګارېدل** :- (ګا + رې + د + لْ) (مص) ضائع کېدل ، بې فائدې او عبث (خرڅ) کېدل ، تلف کېدل۔

**ګارېدنه** :- (ګا + رې + د + نَ) (مص) ضائع کېدنه ، بې ځایه او عبث کېدنه ، (خرڅ کېدنه) تلف کېدنه۔

**ګاړ** :- (ګا+ړ) (اس،مذ ،ج ــ ونه) سخته او کاڼېزه زمکه ، سنګلاخ۔

**ګاړبوزے** :- (ګا + ړ + بُو + زَے) (اس ، مذ) د کچ یوه د لاس پېمانه چې د کټې ګوتې او مسواکې ګوتې تر مېنځه وي۔ ګاړګوزے هم ورته وائي۔

**ګاړګوتے** :- (ګا +ړِ + ګُو +تَے) (صف) وَل وَل ، تاؤ راتاؤ ، ګلګوتے (وېښتهٔ)۔

**ګاړګوزے** :- (ګا + ړْ + ګُو + زَے) (صف) (و ــ ګاړبوزے)۔

**ګاړه** :- (ګا + ړَ) (اس ، مو ، ج ــ ړې) د مستو هغه لاندینۍ برخه چې د کټوۍ وغېره په ویخ کښې پاتې شي۔ متل : نه ګاړه څټل نهٔ غېلے پورل۔ یعنې نهٔ محنت مشقت کول او نهٔ ئې د ګټې طمع لرل۔ بې غرضه اوسېدل ، د یو طرف پره نهٔ کول۔

**ګاړه** :- (ګا + ړَ) (اس ، مو ، ج ـــ ړې) د ګډو بزو د شپې ځاے چې شپول ترې چاپېره وي۔ شپول ، ګاچ۔

**ګاړه** :- (ګا+ړَ) (اس ، مو،ج ـــ ړې) کاڼېزه سخته زمکه ، سنګلاخ۔

**ګاړه** :- (ګا +ړَ) (اس ، مو ، ج ــ ړې) اوچه مېوه چې په اوبو کښې خوشته کړے شي او بیا څښلے شي۔

**ـــ کول** :- اوچه مېوه په اوبو کښې د څښلو دپاره خوشتول۔

د عشق تبه دې اونۀ شلېده ناصحه
راګاړه کــــه دې د صبر چواره کړه (حسېن)

**ګاړيال** :- (ګا + ړَ + يا +لِ) (و ــ ګړيال)

ستا ديدن ته تلوار څله کړم دلبره
چې ګاړيال د بېلتانۀ وائي څو څو (امير خان هجري)

**ګاز** :- (ګا + ز) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) مهر، د ښځې حق مهر.

**ګاز** :- (ګا+ز) (اس،مذ) يو قسم نرے ټوکے ، نرے ملائم ململ ، ګاچ.

**ګازرګۍ** :- (ګا +زَ رْ + ګَ + ئ) (اس ، مو) يو قسم بوټے چې د ولو په غاړه ډېر کېږي او سپين غونډې ازغي لري.

**ګازره** :- (ګا + زَ + رَ) (اس ، مو ، ج ـــ رې) مشهوره غوړه مېوه چې په زمکه کښې دننه کېږي ،ګاځره.

**ګاړۀ** :- (ګا + ګَ / ڑَ) (اس ، مو ، ج ـــ ګې) ناوه ، وله

د زړۀ ټوکے بــــه کړم سپيــــن د اهلِ دردو
چې جاري مې شوه په مخ د سترګو ګاړه (خوږدل)

**ګاش** :- (ګا +ش) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) ګاړه ، د ګډو بزو شپول ، نغول ، ګاچ.

**ګاف** :- (ګا + ف) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) د "ګ" د توري نوم.

**ګاک** :- (ګا + ک) (و ـــ ګاهک)

**ګاګره** :- (ګا + ګ + رَ) (صف) سخته کاڼېزه (زمکه) کاڼېزه شګه سخته باجري

**ګاګرينه** :- (ګا + ګ + ري + نَ) کاڼېزه ، باجرۍ يا شګې واله سخته زمکه.

**ګاګے** :- (ګا + ګَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ګي) څروے ، مترس ، په فصلونو پاليزونو کښې هغه د لرګي او زړو جامو نه جوړ شوے بت چې مرغۍ ، مارغان پرې ويرولے شي.

د رقيب جور و جفــــا رامعلوم نۀ شوه
ستا رضا ده او که خوشے يو ګاګے دے (جانان ندوي)

**ګاګير** :- (ګا +ګي + ر) (صف ، مذ ، مو ــ ه) بې پروا سړے ، هوائي سړے.

**ګاګېړنه** :- (ګا +ګې + ړ + نَ) (اس ، مو ، ج ـــ نې) خيرنه ، سستـه پستـه او ګنده اوسېدونکې ښځه ، بې سليقې ښځه.

**ګاګېړنه** :- (ګا +ګې + ړ + نَ) (حمص) د خبرو په مېنځ کښې يا په تلو تلو کښې توقف کونه ، ټکلے کېدنه.

**ګاګيړے** :- (ګا +ګيِ + ړَے) (اس ، مذ ، ج ــ ړي) بکواسي.

**ګاګېړَے** :- (ګا + ګَے + ړَے) (اس ، مذ، ج ـــ ړي) خيرن پيرن سړے ، کم عقل ناپاکه سړے.

**ګاګېل** :- (ګا +ګې + لْ) (اس ، جم) انګار، سره شوي سکارۀ ، سُور اور ، بل غرغنډې اور.

**ګاګېلے** :- (ګا + ګې +لَے) (اس ، مذ، ج ـــ لي) ګنګوړے ، ترټرے ، شينکے.

**ګال** :- (ګا + ل) (اس ، مذ) (۱) غوښت ، ارزن ، کاکنج (۲) ګيدړ (۳) پاس پاس (۴) يو زهريلا جولا (۵) د پُنبې غوټۍ (غوزه) (۲) د ګډو بزو پچه چې ويښتو پورې ئې نښتې وي.

چې د شعر فکر ورشي په خواږۀ کښې
سپينې وريژې په مزه شي ورتــه ګال (خوشحال خان)

**ګالس** :- (ګا + ل + سْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه (ربړي) پټه چې جرابې يا پتلون پرې تړلے شي.

**ګالکه** :- (ګا + ل + کَ) (اس ، مو ، ج ـــ کې) د پُنبې غوزه ، ټپوسے.

**ګالګوتۍ** :- (ګا + ل + ګو + تَ + ی) (صف) ګلګوتے ، ول په ول ، ګاړګوتے (وېښتۀ).

په رخسار که تورې زلفې ګالګوتۍ کړې
عــــاشقان به دې ستې په دودستۍ کړې (علي خان)

**ګالل** :- (ګا + ل + لْ) (مص) (۱) برداشت کول ، زغمل ، تېرول. لکه : غم ګالل (۲) پالل ، لکه چا سره دښمني ګالل.

**ګالنه** :- (ګا + ل + نَ) (حمص) برداشت کونه ، زغمنه، تېرونه.

**ګالۀ** :- (ګا + ل) (۱) و ـــ ګالنه (۲) د ګالل نه د ماضي مطلق صيغه.

**ګام** :- (ګا + مِ) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) قدم.

**ـــ په ګام** :- (ــــ پَ ، ګا + م) (مف) (۱) قدم په قدم ، په هر يو قدم (۲) درجه په درجه.

**ــــ زن** :- (ــــ زَ +نْ) (ف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ګامونه اخيستونکے ، په لاره تلونکے ، تېز تېز تلونکے.

**په ـــ کول** :- په ګامونو يا قدمونو کچ کول.

**ګامور** :- (ګا + مَ + و + رْ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) لوے لوے قدمونه اخيستونکے. (اوږدو اوږدو پښو واله ، چې قدمونه ئې هم لوے لوے وي)

**ګامول** :- (ګا + مَ + و + لْ) (مص) په ګامونو (قدمونو) کچ کول.

**ګامه** :- (ګا+مَ) د ګام يو قسم جمع ده. لکه : يو څو ګامه وړاندې لاړ شه.

**ګامي** :- (ګا + مِي) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) ګام اخيستونکے ، په ګامونو کچ کوونکے.

**ګان** :- (ګا + ن) (لاحقه) (۱) فارسۍ د جمعې لاحقه ده. په پښتو کښې هم استعمالېږي. لکه : مياں ګان ، تاروګان ، بوډاګان غېره. (۲) موزون ، لائق ، مناسب.

**ګانا** :- (ګا + نَ) (هندي ، اس ، مو) سندره.

**ګانټو** :- (ګا + ن + ټو) (اس ، مذ) د پچې يا د بټۍ ځاے يا بټۍ.

**ګانده** :- (ګا + ں + ن + دَ) (ظر) صبا ، راتلونکې ورځ

د اسمان پېرې دائ نۀ وي يکسانې
که ئې څرخ دے نن په تا ګانده په ما دے (خوشحال خان)

**نن ـــ** :- (ن + ن ـــ) نن صبا ، نن پرون ، په موجوده وخت کښې.

**ګاندي** :- (ګا + ن + دي) (اس ، مو) د يو کالي نوم دے.

**ګاندۍ** :- (ګا +نْ + دَ + ی) (اس، مو) د ارهټ يا د ګاڼۍ هغه اوږد لرګے چې غوے ورپورې تړلے وي. د دغې لرګي سر عموماً دو ښاخے وي چې د غواې شړونکے پرې ناست وي.

**ګانډوله** :-(ګا+ ن + ډو + لَ) (اس، مو) په دواړو زنګنونو کښېناستلو يوه طريقه ، قعده.

**ګانډولے** :- (ګان + ډو +لَے) (اس، مذ ، ج ـــ لي) قميص، کُرته.

**ګانډۀ** :- (ګا +ن + ډ) (فعل) د ګنډل مصدر نه د ماضي فعل.

**ګانډه** :- (ګا + ن + ډَ) (اس) پرتوغاښ ، ازاربند.

**ګانډۍ** :- (ګا + ن + ډَ + ی) (اس، مو) د تورو مچو ګبين.

**ګانګر** :- (ګا + ن + ګَ + رْ) (اس ، مذ) حلقه ، دائره.

**ګانزه** :- (ګا +ن + زَ) (اس،مو،ج ــ زې) کچې ګوتې څخه جختـه ګوته.

**ګانګوړه** :- (ګا + ں + ګو + ړَ) (صف) هغه چې ژبه ئې نښتې وي چې سمې او صفا خبرې نۀ شي کولے.

**ـــــ کېدل** :- ژبه نښتل چې صفا او واضحې خبرې نۀ شي کولے. د کوم اثر د لاندې يا د مرض په وجه ژبه نښتل ، ترټرۍ کېدل.

**ګانې** :- (ګا + نِ) (لاحقه) د پښتو د جمعې لاحقه ده چې مونث اسمونو نه وروستوراوستے شي. لکه : غواګانې ، مامي ګانې.

**ګانۍ** :- (ګا + نَ + ی) (اس ، مو) (۱) د کونځلو وغېره دومره قدرې مقدار چې په يوځل په ګانۍ کښې اچولې شي. (۲) ګانۍ د تېلو يا د ګنو نه تېل يا شربت ويستلو مشين . (۳) هغه ښکلې ګنګروګانو واله پټه چې د ښکلا دپاره د څاروو په غاړه کښې اچولې شي. (۴) يو پټه چې زنانه ئې په غاړه کښې تړي.

**ګانګوړے** :- (ګا +ن + ګو + ړَ + ے) (صف، مذ ، ج ــ ړي) هغه کس چې د مرض يا د کوم اثر تر لاندې ئې ژبه نښلي ، ترټرے.

**ګانه** :- (ګا +ن + رَ +ن) (اس، مو ، ج ــ ړې) کالے ، زېور.

**ګانه** :- (ګا +ن + رَ +ن) (اس ، مو ، ج ــ ړې) رهن ، د پېسو په بدله کښې زمکه ، کالي وغېره د اعتبار په طور ورکول.

**ګانه** :- (ګا +ن + رَ +ن) (فعل) د ګڼل مصدر نه د ماضل صيغه.

**ګانۍ** :- (ګا +ڼ + ی) (اس، مو) (۱) هغه تغاره چې ګلکاران په کښې چونه او ګچ وغېره جوړوي. کدهل (۲) خاوره چې په مېنځ کښې ئې د اوبو دپاره لوے ډوغل جوړ کړے شي. چې د تعمير ، لپو دپاره ګاره خټه ترې تياره کړے شي.

**ګانۍ** :- (ګا + ڼ + ی) (اس، مو) (۱) د ګنو نه د شربت ايستلو مشين (۲) د کونځلو، شرشمو وغېره نه د تېلو ايستلو مشين. (۳) هغه ځاے ته هم وائي چې د ګنو يا د تېلو ګانۍ لګېدلې وي. لکه : فلانے هلته په ګانۍ کښې کار کوي.

**ـــــ وال** :- (ـــــ وا + ل) (اس ، مذ، ج ــ ان) د ګانۍ خاوند ، د ګانۍ چلونکے ، ګانۍ مار .

**ګاؤ** :- (ګا + ؤ) (هـ ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) زخم ، ژوبل شوے ځاے (هـ ــ ګهاؤ)

**ګاو** :- (ګا +و) (ت ، اس) غوا .

**ـــ خانه** :- (ـــ خا + نَ) (ظرف) هغه ځاے چېرته غوا غويان وغېره (څاروي) تړلے شي.

**ـــ زبان** :- (ـــ زَ + با + ن) (ف تر ، اس ، مذ) يو قسم غرئيز بوټے دے چې په داروګانو کښې استعمالېږي.

**ګاواره** :- (ګا + وا + رَ) (و ـــ ګهواره)

**ګاوان** :- (ګا+وا + ن) (ف ، اس ، ج) د ګاؤ جمع ، غواګانې يا غويان.

**ګاوتکيه** :- (ګا + ؤ + تَ + کْ + يَ) (هـ ، تر ، اس ، مذ) لوے غونډ بالښت چې په ناسته پرې ډډه لګولے شي.

**ګاوچو** :- (ګا + و + چُو) (اس) هغه ترنګړ شان چې دواړو طرفونو ته ئې لرګے تړلے شوے وي. او د زم ببل کار ترې اخستے شي.

**ګاودي** :- (ګا + ؤ + دي) (ف ، صف) کم عقل ، احمق ، بېوقوف.

**ګاور** :- (ګا + وَ + رْ) (اس، مذ) غصه ، قهر.

**ګاوز** :- (ګا +و + زْ) (اس ، مذ ، ج ــ ان) ښکرونو واله هوسۍ.

مزرے ښکار کا د ګاوزو
پيشو ګرځي ښکار مږک کا (خوشحال خان)

**ګاوزه** :- (ګا+ و + زَ) (اس ، مو ، ج ــ زې) د ښکرونو واله هوسۍ.

د زمري منګل ګاوزې غواړي غوېړي
د شـــاهين حمله پـــه زاڼې يا په بطه (خوشحال خان)

**ګاوګوز** :- (ګا + ؤ + ګو + ز) (اس ، مذ ، ج ــ ان) ګوزن ، ځنګلي غويا ے ، باره سنګے.

**ګاوله** :- (ګا +و + لَ) (اس ، مو ، ج ــ لې) يو قسم بوټي يا پېزار چې عام طور سره ئې کوچيان استعمالوي.

**ګاولے** :- (ګا +و + لَے) (اس ، مذ) يو قسم پېزار.

**ګاونډ** :- (ګا +وَ + نْ + د) (ظرف) همسايه والے ، د بل په خوا کښې لکه : زۀ خو ستا په ګاونډ کښې اوسم.

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب)

**ـــ ګيري** :- (ـــ ګي +رِي) يو بل سره خوا په خوا کښې اوسېدنه ، همسايه ګيري ، همسائيګي.

**چم ـــ** :- (چَ + مْ ـــ) (ظرف) په يو محلت کښې يا د يو بل سره خوا په خوا کښې استوګنه. همسائيګي ، کورمحلت.

**ګاونډي** :- (ګا +وَ + نْ + ډِيْ) (اس ، مذ ، ج ــ ان) په خوا کښې اوسېدونکے ، همسايه.

**ګاوڼ** :- (ګا + و + ن + ړْ +ن) (۱) د ښځو سندرې او ګډا (۲) د ښځو او سړو يو ځاے ګډا .

**ګاوڼه** :- (ګا +وَ + ړَ +ن) (اس ، مو ، ج ــ ې) د يو لوے لاسکي لرګے چې په ګانۍ کښې د ګنو شربت پرې لړلے شي.

**ګاووکۍ** :- (ګا + وُو + کَ + ی) (اس ، مو) د زنانۀ د سر د ويښتو د جوړولو يا کمڅۍ کولو يو خاص قسم.

**ګاوه** :- (ګا + وَ) (صف ، مو ، ج ــ وې) ګرم ، تود ، کاړے.

**ـــ کول** :- تودول ، ګرمول.

**ګاه** :- (ګا + هـ) (اس ، ظر) وخت ، شېبه ، د وخت برخه ،

که يو څو ګاهه ژوندے وم په دنيا کښې
خــود بـــه واوړم د مـــدو د بابا حـــال (خوشحال خان)

**ـــ ګاه** :- (ـــ ګا + ه) (ف ، ظرف) کله کله ،کله نه کله،ځينې ځينې وخت.

**ګاهر** :- (ګا + هَ + رْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه / رې) ګوار، د غوا، غوايانو وغېره ګله ګوهار ، ګورم.

**ګاهک** :- (ګا + هَ+ کْ) (اس ، مذ، ج ــ ان) ګواښ لرونکے.

**ګاهک** :- (ګا +ه + ک) (هـ ، اس ، مذ ، ج ، ــ ان) خريدار ، څۀ څيز په بيعه اخيستونکے.

**ګاهو** :- (ګا + هُو) (اس ،مذ، ج ــ ان ، ګان) د غواؤ سخو وغېره څروونکے. غوبه.

**ګاهې** :- (ګا + هَے) (اس ، مذ) لوے يا ژور زخم ، ژور زخم.

**ګاهې** :- (ګا +هے) (ف ، ظرف) کلکه ، ځينې وخت.

**ـــ ګاهې** :- (ـــ ګا + هے) (ف ، ظرف) کله کله ، ځينې ځينې وخت

**ګايۍ** :- (ګا + يی) (اس ، مذ) قول ، لفظ ، ونده.

**ګائېدل** :- (ګا + ئې + د + لْ) (مص) خبرې کول، ګفتګو کول.

**ګائېدونکے** :- (ګا + ئې + دُو + نْ + کَے) (اس ، فا ، ج ــ کي) خبرې کوونکے ، رږغېدونکے ، ګړېدونکے.

**ګائېدۀ** :- (ګا+ئې+د) (حمص) خبرې کونه،خبرې کول ، رږغېدنه ګړېدنه.

**ګائېډ** :- (ګا+ئې+ډْ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ــ ان) رهنما ، لار ښودونکے.

**ګايل** :- (ګا + يَ + لْ) (صف ، م ، مو ـــ ه) زخمي ، ګواتل ، ژوبل ، (هندي ــ ګهائل).

**ګائېدل** :- (ګا+ئې+د+لْ) (مص) خبره کول ، خبرې کول ، رږغېدل ګړېدل.

**ګب** :- (ګ + بْ) (اس ، مذ) غورزولے شوے ماشوم ، هغه ماشوم چې د لارې نه پورته کړے شوے وي. موندلے شوے ماشوم.

**ګب** :- (ګ + بْ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) غټ ، څورب ، لوے.

**ګبر** :- (ګَ + بَ +رْ) (ف، اس ، مذ، ج ــ ان ، مو ــ ه) (۱) د اور پرستش کوونکے ، مجوس ، اور نمانځے ، اتش پرست

طهـــارت د مســلمان کبـــرې خوشـــحاله
نـــۀ اودس غســـل د ګبـــر طهـــارت کـــا

(۲) مجازاً کافر

ډېر که ئې د غوږو شي اذان د ملايانو

ګبر ابوجهل به د شرعې په دين نهٔ شي (حافظ)

**ګبره** :- (ګَ + بْ + رَ) (اس ، مو ، ج ــ رې) د ګبر تانيث دے۔ اتش پرست۔

**ګبرۍ** :- (ګَ + بَ + رَ + ی) اس، مو) د جرابو د ترلو ربړونه ، ګيتس۔

**ګبړه** :- (ګَ + بْ + ړَ) (اس، مو ، ج ــ ړې) د کاڼي لويه تخته چې سرے ئې پورته کولے شي۔

**ګبه** :- (ګَ + بَ) (اس ، مو ، ج ــ بې) ډوکره ، هغه لرګي چې هلکان ورسره لوبې کوي۔ ډوکرې ۔

**ګبين** :- (ګَ + بِيْ + ن) (اس ، مذ ، ج ــ ونه ، ان) (۱) شهد (۲) د شاتو د مچوګګ (۳) د سرو مچوګګ ته هم وائي (۴) مجازاً خوږ۔

**ـــ جاله** / ژاوله :- (ـــ جا/ ژا + وَ + لَ) (اس، مو، ج ــ لې) موم

**ـــ خانه** :- (ـــ خا + نَ) د شاتو د مچو کور۔

**ګبينه** :- (ګَ + بِي + نَ) (اس ، مذ) شهد ، شات۔

**ګپ** :- (ګَ + پْ) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) خبرې اترې۔

**ـــ جوړول** :- (و ــ ګپ لګول)۔

**ـــ شپ** :- (ـــ شَ + پْ) (شپ تابع مهمل دے) مراد ترې ګپ دے۔ خبرې اترې۔ په خپله کښې د مزې مزې خوندناکې خبرې۔

**ګپاوو** :- (ګَ + پا + وو) (و ــ ګپې)

**ګپو** :- (ګَ + پْ + پُوْ) (و ــ ګپې)

**ګپه** :- (ګَ + پَ) (اس ، مو ، ج ــ پې) د ګپ تانيث دے (۱) لويه ټکړه ، چم (۲) لويه غړۍ ، غټه نوړۍ (۳) ډک موټے ، هغه څيز (خاوره وغيره چې موټے ترې ډک شي۔

**ګپه** :- (ګَ + پَ) (ف ، اس ، مو ، ج ــ پې) (۱) و ــ ګپ (۲) قصه، بيان۔ لکه : هلکه ټوله ګپه ورته وکړه۔

**ګپے** :- (ګَ + پے) (اس ، مذ) (۱) واګه ، لګام ، هغه پړے چې د واګې کار ترې اخستے شي۔ (۲) ګڅے۔ په ګڅ لاس کار کوونکے۔

**ګپي** :- (ګَ + پي) (هـ ، اس ، ج) (۱) خبرې اترې کول ، په خبرو ځان مشغولول (۲) دروغ وئيل۔

**ـــ لګول** :- په خپلو کښې مجلس کول ، خبرې اترې کول۔

**ګپۍ (۲)** :- (ګَ + پي) (ګپه (۲) جمع ده) لويې لويې نمړۍ ، غټې غټې نوړۍ۔

**ـــ وهل** :- غټې غټې نوړۍ خولې ته اچول ، لويې لويې نمړۍ خوړل۔

**ګپي** :- (ګَ + پْ + پِيْ) (صف ، مذ) (۱) ګپ لګوونکے ، خوند ناکې او مزېدارې خبرې کوونکے ، مجلس ګرمونکے۔ مجلس ارا ، خوش طمع۔ (۲) ډېرې خبرې کوونکے ، خبر لوڅے ، ګپو۔

**ګت** :- (ګُ + تْ) د ګُته (يا ګوته) مخفف دے ۔ نورو الفاظو سره يو ځاے راځي۔

**ـــ منډي** :- (ـــ مَ + نْ + ډِيْ) (پ تر ، اس، مو) ګوته يا ګوتې ورمنډل دخل ورکول۔ مجازاً اعتراض ، نکته چيني ، عېب لټونه۔

**ـــ کول** :- ګتې يا ګته ورمنډل۔ مجازاً اعتراض ، نکته چيني کول

هـــر شاعر ئې په وئيلو ګت منډي کا

که په شعر کښې ئې تهٔ من ئې دے مثقال (خوشحال خان)

**ګتکه** :- (ګَ + تْ + کَ) (اس ، مو ، ج ــ کې) (۱) کرتب ، په کشتۍ وغيره کښې مهارت (۲) په کشتۍ کښې داؤ پيچ (۳) دوکه ، فرېب ، چل۔

**ـــ کول** :- (۱) په کُشتۍ کښې د داؤ نه کار اخيستل (۲) دوکه کول ټګي کول۔

**ګتکے** :- (ګَ + تْ + کَے) (اس ، مذ) د غونډسکې يا د فټ بال يوه لوبه۔

**ګتکې** :- (ګَ + تْ + کې) (۱) د ګتکه جمع ده (۲) د "ګتکه" بدل شکل دے چې مغېرهٔ تورو سره راځي۔

**ـــ کول** :- دوکې ورکول ، چل فرېب کول۔

**ګتلکه** :- (ګُ + تْ + لُ + کَ) (صف) هغه جينۍ چې پېغلتوب ته نژدې وي او سترګې پرې خوږېږي۔

**ګتلۍ** :- (ګَ + تْ + لَ + ی) (اس ، مو) (۱) يو قسم بوټے دے چې زمکې سره لګېدلے وي او خړ رنګې پاڼې لري۔ (۲) د پېزار يو قسم۔

**ګتمونے** :- (ګَ + تْ + مُو + نَے) (و ــ ګاتمونے)

**ګتمه** :- (ګُ + تْ مَ) (اس ، مو ، ج ــ مې) (۱) د بټن (تڼۍ) کاج ، (۲) انګشتانه ، (چې درزيان ئې د ګوتې په سر کښې اچوي۔

**ګتمۍ** :- (ګُ + تْ + مَ + ی) (و ــ ګتمه)

**ګته** :- (ګَ + تَ) (اس ، مو ، ج ــ تې) غټ کاغذي تخته چې د کتابونو جلدونه وغيره ترې جوړېږي۔

**ګته** :- (ګُ + تَ) (اس ، مو ، ج ــ تې) (۱) انګشت ، ګوته (۲) انګشترې۔ چې په ګوته کښې اچولې شي۔

**ـــ ابنبودل** :-

**ـــ کښبښودل** ، د کلمې په ځاے :- ربنتيا پټېول ، حقه خبره پټول۔

**ـــ په لاس کول** :- ګته (انګشترې) د لاس په ګته (انګشت) کښې اچول۔

**ـــ د حېرت په خولهٔ کول** :-

**ـــ په غاښ کول ، په غاښ کښې نيول** :- ډېر زيات حېرانېدل۔ ډېر سخت تعجب کول۔

**ـــ کول ، چا سره** :- ټګي کول، فرېب دوکه کول ، چل کول۔

**ـــ لګول** :- (۱) په کاغذ (اسټام) د کټې ګُتې نښان لګول۔ (۲) اَنْ پړهـ "بودل" (دستخط نهٔ ورتلل) (۳) مجازاً اقرار کول ، وعده کول۔

**ـــ نيول ، چاته** :- اعتراض کول ، په چا باندې ۔

**ـــ ورکول** :- د چا په پټ اندام کونه يا کُس کښې ګته ننه يستل۔

**ـــ ورکول ، د شېطان** :- بدکار يا د شر د خبرې ډېاره د شېطان رالمسول۔

**په ـــ څنډل ، ځان** :- ډېر فېشن کول ، ځان ډېر پاک صاف ساتل۔

**توره ـــ په چا پورې منبل** :- تور پورې کول ، بدنامول۔

**نور / نمر په ـــ پټول** :- داسې حقيقت پټول کوم چې پټېدے نهٔ شي اوبس په بېړه کول۔

**يو ـــ** :- (يو ـــ) لړ شان ، لکه يو ګته رباب غږول۔

**ګتې** :- (ګُ + تَې) (۱) د ګته جمع ده ۔(۲) د "ګته" بدل شکل دے چې مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**ـــ اچول** :- په کوم کار لاس پورې کول۔ شورو(شروع) کول۔

**ـــ ابستل** / اباسل د چا د ګرېوان نه /څخه :- د چا سره د شر نه لاس اخېستل۔ د چا شر ختمول۔

**ـــ پورې کول** :- لاس پورې کول ، په کوم کار شورو(شروع) کول۔

**ـــ په غښ وهل** :- ځان ته مصيبت راولاړول ۔

**ـــ تر ګتې نيول** :- په تلو کښې د يو بل ګتې (يا لاس) نيول ، يو ځاے تګل۔

**ـــ چيچل** :- په قهرېدل ، غصه کېدل۔

**ـــ خوړل** ، څهٔ څيز سره :- څهٔ پخکړے وغيره دومره ښهٔ او خوندناک "بودل" چې ورسره خپلې ګتې هم وخوري۔ ډېر مزېدار او خوندناک "بودل"

**ـــ حېرت** / د حېرانۍ په خولهٔ کښې نيول :-

**ـــ د حېرت** / د حېرانۍ په غاښ کښې نيول :- ډېر زيات حېرانېدل ، ډېر زيات تعجب کول۔

**ـــ لګول** ، د چا سره :- لاس لګول ، جنګ جګړه کول۔

ـــــ **ماتول** ، چا سره :- ډېر بحث کول ، په بيعه کښې کلکېدل.

**پنځه** (واړه) ـــــ په خوله کښې منډل :- هر ځۀ ځان دپاره خوښول ، هر ځۀ ځان ته کول ، ډېر حرص کول.

د ـــــ **ځاے موندل** :- لږ شان ځاے موندل ، لږ شان اجازت موندل. وائي چې د گټې ځاے ومومې نو سُوک ورمنډې.

د ـــــ **کښېښودلو ځاے** :- د اعتراض ځاے. لکه : د گټې کښېښودو ځاے په کښې نشته. ټول ډېر ښۀ يا صحيح دے. هېڅ اعتراض پرې نۀ شي کېدلے.

**گټ** :- (گَ + ټْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه ، ان) کاڼے ، لويه گټه.

**گټ** :- (گَ + ټْ) (هـ ، اس ، مذ) گُوره توره وريځ.

**گټات** :- (گَ + ټا + ت) (اس ، مذ) گټه ، نفع ، فائده.

**گټکه** :- (گَ + ټْ + کَ) (اس ، مو ، ج ـــ کې) د وريځې وړه شان ټکړه ـ غوړخکه.

**گټکی** :- (گَ + ټْ + کَ + یْ) (اس ، مو) گيټکے ، وړوکے شان کاڼے سنگچل ، سنگ ريزه.

**گټکے** :- (گَ + ټْ + کَے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) د گټ تصغير ، وړوکے گټ ، گټه.

**گټل** :- (گَ + ټ + لْ) (مص) (۱) فائده اخيستل ، نفع پورته کول. حاصلول (۲) مقابله يا جوارۍ وغېره کښې بريالے يا گټندويه کېدل.

**استقلال** ـــــ :- (ا + سْ + ت + ق + لا + لِ ـــ)

**ازادي** ـــــ :- (آ + زا + دي ـــ) ازادي حاصلول.

**برے** ـــــ :- (ب + رَے ـــ) فتح موندل ، بر کېدل.

**گټمن** :- (گَ + ټْ + م + نْ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) گټه موندونکے ، فائده من ، نفع من.

**گټندوکے** :- (گَ + ټَ + نْ + دُو + کَے) (و ـــ گټندوے)

**گټندوے** :- (گَ + ټ + نْ + دو + ے)

**گټندويه** :- (گَ + ټ + نْ + دو + يَ) (صف ، اس) گټه کوونکے ، گټلو واله ، کمائي کوونکے.

**گټنگوے** :- (گَ + ټ + نْ + گُو + ےَ) (صف، مذ، مو ـــ ه) غمخور په فرياد رسېدونکے.

**گټنه** :- (گَ + ټ + نَ) (حمص) (۱) گټه ، کمائي ، فائده (۲) گټه کونه ، نفع اخيستنه.

هۀ هورې به ارمان ډېر وي
د گټنې وخت به تېر وي (حافظ)

**گټو** :- (گَ+ټو) د گټې بدل شکل ، چې مغيره تورو سره استعمالېږي.

په ـــــ **ويشتل** :- ډېر نفرت ځنې کول ، ډېر بدې کېدل.

د لېونۍ ارمان پوره شو
په لاره ځي په گټو اولي زيارتونه (ټپه)

په ـــــ **ويشتل** د چا سورف :- مبالغه ده. بې کچه ډېره کرکه ځنې کول. ځوک ډېر سخت بدې کېدل.

د ـــــ :- د يوسفزو په "کوټه" نومې کلي کښې کوټې ته وائي. کمره.

**گټور** :- (گَ + ټْ + و + رْ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) گټمن ، نفع مند ، فائده حاصلوونکے. گټه کوونکے.

**گټونکے** :- (گَ + ټو + ن + کَے) (اس، فا ، ج ـــ کي) گټلو واله ، گټه کوونکے ، کمائي کوونکے.

**گټه** (۱) :- (گَ + ټَ) (صف، مو ، ج ـــ ټې) (۱) غټه ، لويه ، کټه (۲) کټه گوته ، غټه گوته.

ـــــ **گوته / گته** :- (ـــ گُ + تَ) غټه گوته ، کټه گوته.

**گټه** :- (گَ+ټَ) (اس، مو، ج ـــ ټې) کاڼے ، د گټ تصغير او تانيث.

ـــــ **کښېښودل** :- (۱) تيږه کښېښودل ، بنياد کښېښودل (۲) د صلحې نخښه کېدل.

ـــــ **کښېښودل** ، د بنياد :- د بنياد کاڼے په دېوال کښې لگول ، سنگ بنياد کښېښودل ، د کوم عمارت په شروع کښې د کوم عزتمند يا بزرگ سړي په لاس اولنۍ گټه لگول. عموماً په دې گټه يا کاڼي د دې سړي نوم او تاريخ وغېره هم ليکلے وي.

**گټه** (۳) :- (گَ + ټَ) (اس ، مو ، ج ـــ ټې) (۱) نفع ، فائده (۲) کمائي.

ـــــ **بېلات** :- (ـــ بې + لا + ت) گټل او بېلل ، نفع او نقصان

ـــــ **رسول** / ورکول :- فائده رسول ، نفع رسول.

ـــــ **کول** / موندل :- په تجارت وغېره کښې نفع حاصلول.

ـــــ **وټه** :- (ـــ وَ + ټَ) (۱) امدن ، کمائي ، نفع (۲) ټوله نفع.

ـــــ **ور** :- (ـــ و + رْ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) فائده مند ، نفع مند ، نفع بخش.

**اجتماعي** ـــــ :- (ا+جْ+ت + ما+عي ـــ) د ټولو خلکو د امدن جمع.

**گټه** :- (گَ + ټَ) (فعل) د "گټل" مصدر نه د استمراري امر صيغه.

**گټې** :- (گَ / گ + ټ + یْ) (اس ، مو) (۱) وړوکے شان کاڼے ، سنگ ريزه (۲) د چيلم د خاورو گولۍ.

**گټي** :- (گُ + ټيْ) (هـ ، اس ، مذ) گوټي ، د مختلفو داروگانو نه جوړ شوے سفوف ، چې ماشومانو له ورکولے شي.

**گټے** :- (گ + ټَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ټي) د پښې دواړو غاړو ته بهر ته وتلے غونډه هډوکے ، گيټۍ.

**گټې** :- (گَ + ټې) (۱) د گټه جمع ده. (۲) د گټه بدل شکل چې مغيره تورو سره راځي.

ـــــ **وټې** :- د "گټه وټه" جمع ده. نفعې ، فائدې.

د ـــــ **وټې کېدل** :- د پېسو د گټلو جوگه کېدل.

د ـــــ **وټې وتل** :- د پېسو د گټلو نه پاتې کېدل ، د پېسو گټلو د کاره وتل ، بېکاره کېدل.

**گټيالے** :- (گَ + ټْ + يا + لَے) (و ـــ گټندوئے)

**گټيخ** :- (گَ + ټي + (د) ز) (و ـــ گټيز)

**گټېر** :- (گ + ټې + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د غر کوږ گردش.

**گټيز** :- (گَ + ټي + ز) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د گټو نه جوړ شوے.

**گټين** :- (گَ + ټي + ن) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) د گټو نه جوړ شوے ، کاڼو ځخه جوړ شوے. لکه : گټين پل.

**گټينه** :- (گَ + ټي + نَ) (صف ، مو ، ج ـــ نې) (۱) د گټو نه جوړ شوے ، (۲) کاڼيزه (زمکه).

**گج** :- (گَ + جْ) (اس ، مذ) يو ځنگلي بوټے دے چې د ريشو نه ئې پړے غښتلے شي. او دغه ريشې ئې ځاروو په دارو کښې پکارولے شي.

**گجات** :- (گَ + جا + تَ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) اصيل.

**گجاتے** :- (گَ + جا + تے) (اس ، مذ) يو قسم گياه. چې اوږدې اوږدې پاڼې لري. د ولو په غاړه پېدا کېږي. د زخمونو د علاج دپاره پکارولے شي.

**گجرا** :- (گَ + جْ + رَ) (هـ ، اس ، ج ـــ رې) بنگړے (هـ. گجرا = د گلونو نه جوړ شوے بنگړے).

**گجرکے** :- (گَ + ج + رْ + کَے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) د وړو د لوبې د کاڼي يا ټيکرې نه جوړه غونډه ټيکۍ. دې ټيکو سره چې کومه لوبه کېږي هغې ته هم گجرکے وائي (ف. د شپاک لوبه).

**ګجره** :- (ګَ + جْ + رَ) (اس ، مو ، ج ـــ رې) بنګړي ، ګجرۍ.
**ګجرۍ** :- (ګَ + جْ + رَ + ۍ) (و ـــ ګجره).
**ګجوله** :- (ګَ + جو + لَ) (اس ، مو) يو قسم دارو دي چې د اوربشو نه جوړولے شي او ناروغه اوښانو له ئې ورکوي.
**ګجوي** :- (ګَ + ج + وِيْ) (اس ، جم) د څينو بوټوپي.
**ګجوينه** :- (ګَ + جو + يِيْ + نَ) (اس ، مو) ډوډۍ چې د اوربشو او د غنمو د ګډ وړ اوړو نه جوړولے شي.
**ګځموزے** :- (ګَ + (د) زْ + مُو + زَے) (صف) (۱) هغه سړے چې چپ او غلے وي او د زړهٔ حال چا ته نهٔ څرګندوي. ګوزموزے. (۲) و ـــ ګځموږے.
**ګځموږے** :- (ګَ + (د) زْ + مُو + ګے / ژے) (اس ، جم) هغه کُچ چې د مستو (شوملو) په سر پراته وي. خو چې لاتړول شوي نهٔ وي.
**ګچ** :- (ګ + چْ) (صف) د اوښ وړاندينۍ پښې چې په تلو کښې ئې سينې سره لګي. نو زخمي شي. دې حالت ته ئې ګچ وائي. او داسې زخم واله اوښ ته هم ګچ وائي.
**ګچ** :- (ګَ + چْ) (اس ، جم) يو قسم سپينه معدني خاوره ده. چې چونې وغېره سره ګډه کړي او په ابادو کښې ئې استعمالوي.
ـــ **بټۍ** :- (ـــ بَ + ټَ + ۍ) (اس ، مو) د ګچ جوړولو بټۍ يا پزاوه.
ـــ **ځائے** :- (ـــ (د) زا + ے) (اس ، مذ) ګچ خانه ، هغه ځائے ، دېوال ، فرض وغېره چې د ګچو سره سپينه کړې شوې وي.
ـــ **ګر** :- (ـــ ګَ + رْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) د ګچو اُستکار ، د چونه ګچ کار کوونکے.
ـــ **ګل** :- (ګُ + لْ) (اس ، مذ) هغه ګل (يا ګلونه) چې د چونه ګچ په کار کښې د زينت او ښکلا دپاره جوړولے شي.
**چونه** ـــ :- (چو + نَ ـــ) د چونې او د ګچ ګډون چې عمارتونو کښې د مسالې په طور پکارولے شي.
**چونه** ـــ کول :- د چونې او ګچو سره عمارت سپينول.
**ګچ** (۲) :- (ګَ + چْ) (صف) د ګډو د نسل ، مخلوط النسل.
**ګچ** (۳) :- اوږدوالے معلومونه، کچ ، عام لفظ "کچ" (کاف سره) دے.
**ګچګر** :- (ګَ + چْ + ګ + رْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) د کچ کار کوونکے کچ کوونکے. (عموماً کاف سره ليکلے او وئيلے کېږي).
**ګچګول** :- (ګَ + چْ + ګو + ل) (صف ، مذ) حواس باخته ، اوتر ، پرېشانه

جـــامِ جـــم دے د مجنـــون هغـــه کچکـــول
دے مجنـــون تـــه افلاطـــون شـــهٔ ګچکـــول

**ګچل** :- (ګَ + چ + لْ) (مص) د ګچ کار کوونکے ، په ګچو سپينول.
**ګچل** (۲) :- (ګَ + چ + لْ) (مص) مېچ نيول ، کچل ، کچ کول ، د اوږدوالي اندازه اخيستل. (عام طور سره کاف سره "کچل" وئيلے او ليکلے شي.)
**ګچو ګول** :- (ګَ + چو + ګو + ل) (مف ، مذ) وارخطا ، حواس باخته اوتر ، پرېشانه.
**ګچول** :- (ګَ + چُو + لْ) (صف ، مذ) خوشے ګرځېدونکے ، اواره ګرد ، برزه ګرد.
**ګچولي** :- (ګَ + چو + لِيْ) (اس ، مو) اواره ګردي ، خوشے ګرځېدنه هرزه ګردي.
**ګچه** :- (ګ + چَ) (اس ، مو ، ج ـــ چې) اندازه ، تخمينه ، کچ.
**ګچهٔ** :- (ګَ + چ) (اس ، مذ) اندازه ، پېمائش ، کچ.
ـــ **کول** :- کچ کول ، پېمائش کول.
ـــ **کېدل** :- کچ کېدل ، پېمائش کېدل ، د اوږدوالي اندازه لګېدل.

**ګچه** :- (ګ + چَ) (اس ، صوت) د بزو د شړلو اواز ، کچه ، کچې.
**ګڅ** :- (ګ + (ث) سْ) (اس ، مذ ، مو ـــ ه) ګڅ ، د ښي (طرف) ضد ، کيڼ.
ـــ **لاس** :- (ـــ لا + س) کيڼ لاس ، (د ښي لاس ضد).
ـــ **لوسه** :- (ـــ لو + سَ) (پ تر ، صف) په ګڅ (کيڼ) لاس کار کوونکے ، ګسے ، ګڅے.
د ـــ **لاس کار** :- (ـــ لا + س + کا + ر) ډېر اسان کار ، داسې کار چې په ګڅ (کيڼ) لاس ئې هم کولے شي.
**ګڅه** :- (ګ + (ت) سَ) (اس ، مو ، ج ـــ څې) د قچې او منځنۍ ګوتې تر مېنځه ګوته. بنصره ، لاګو لکړه.
**ګڅه** :- (ګَ + (ت) سَ) (ظرف) د ګڅ تانيث.
ـــ **خوا** :- ګڅ يا ګس اړخ ، کيڼ لورے.
**ګڅۍ** :- (ګَ + (ت) سَ + ۍ) (صف ، مو) هغه ښځه چې په ګڅ (کيڼ) لاس کار کوي. کيڼ لاسې.
**ګڅے** :- (ګ + (ت) سَے) (صف ، مذ ، ج ـــ څي) هغه سړے چې په ګڅ (کيڼ) لاس کار کوي. ګڅ لاسے ، کيڼ لاسے.
**ګد** :- (ګَ + دْ) (ف ، اس) ګدائي ، سوال ، خواست
**ګدا** :- (ګَ + دا) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ يان) فقير ، سوالګر ، خېر غوښتونکے.

تلـهٔ دې تېرېدهٔ دې دا جهان د مقام نهٔ دے
شاه دے که ګدا دے خو به وربشي تر ګوره (خواجه محمد)

ـــ **ګر** :- (ـــ ګَ + رْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) فقير ، خېر غوښتونکے ، خېرمار ، سوال کوونکے.
ـــ **ګري** :- (ـــ ګَ + رِيْ) (اس ، مو) فقيري ، خېر غوښتنه.
**ګداز** :- (ګُ + دا + ز) (ف ، اس ، مذ) ويلې کېدنه ، نرمېدنه.

چې ببلتون ئې په زړهٔ نوے نوے داغ ږدي
سوز ګـــداز کلـــه کمـــېږي د داغليو (حافظ)

**ګداز** :- (ګ + دا + ز) (ف ، لاحقه) لاحقه ده چې د اسمونو نه وروستو لګولے شي. او د ويلې کولو معنٰی ورکوي. لکه: دل ګداز.
**ګدازول** :- (ګُ + دا + زا + و + لْ) نرمهٔ ول ، ويلې کول.
**ګدازېدل** :- (ګُ + دا + زې + د + لْ) (مص) ويلې کېدل ، اوبهٔ کېدل ، نرمېدل.
**ګدام** :- (ګُ + دا + م) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) هغه کوټه يا ځائے چېرته چې د کومو څيزونو (غلې وغېره) ذخيره يو ځائے کښېښودے شي. انبار خانه ، ګودام (۲) په کور کښې هغه کوټه يا ځائے چېرته چې د کور مات ګډ او ناپکاره څيزونه کښېښودے شي.
ـــ **دار** :- (ـــ دا + ر) (ف ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د ګودام محافظ ، ګودامچي ، ستور کيپر.
**ګدانهٔ** :- (ګَ + دا + ن) (اس ، ج) د ګډون جمع ده. د پښتنو د يوې مشهورې قبيلې نوم دے.
**ګدائي** :- (ګَ + دا + ئي) (اس ، مو) خېر غوښتنه ، سوالګرتوب.
**ګدائے** :- (ګَ + دا + ئے) (و ـــ ګدا)
**ګددک** :- (ګَ + دْ + دَ + کْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) تبر ، د لرګو د څېرلو اله.
**ګدر** :- (ګُ + د + رْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) په درياب يا په سيند کښې هغه ځائے چېرته چې خلک پورې غاړې ته (په لاښو) پورې ووزي. ګودر. (۲) په سيند درياب کښې هغه ځائے چې کشتۍ ، بېړۍ د سيند درياب نه پورې راپورې څي ، ګودر.
**ګدره** :- (ګَ + دَ + رَ) (۱) د ګدر يو قسم جمع ده (۲) د ګدر بدل شکل چې د مغيره تورو سره راځي. (ګودره).
**بې** ـــ :- (بې ـــ) په سيند وغېره کښې هغه ځائے چې هلته ګدر نهٔ وي.(

په داسې ځای د سیند پورې وتل خطرناک وي) بې ګودره، په خطا لار، بې لارې، بې موقعې.

**بې ــــ ګډېدل** :- په سیند کښې داسې ځای کښې ورګډېدل چې عام ګدر نه وي. ځکه مجازاً په غلطځای ورګډېدل. په غلط موقع څۀ کار کول.

**ګدړ** :- (ګ + دْ + ړْ) (و ــــ ګیدړ)

**ګدړۍ** :- (ګُ + دْ + ړَ + ۍ) (هـ، اس، مو) کند، ګدله، د فقیرانو جامه یا څادر چې د مختلفو غټو ټوکو د ټاکو نه جوړه شوې وي.

**ګدلو** :- (ګ + دَ + لو) د "ګدلې" بدل شکل چې مغیره ؤ تورو سره راځي

**د ــــ ستن** :- (د ــــ س + ت + نْ) (اس، مو، ج ــــ نې) هغه غټه ستن چې کند ګدلې پرې ګنډلې شي.

**ګدله** :- (ګَ + د + لَ) (اس، مو، ج ــ لې) (۱) خرقه، کند، ګدړۍ

چې عمل ئې د نېکۍ وي مېړه هغه
کـه اغوستې ئې ګدله د خمتا وي (احمد شاه ابدالي)

(۲) مجازاً: زړه جامه (چې شلېدلې او ټاکۍ پرې لګېدلې وي).

**ګدم** :- (ګُ + دَ + مْ) (اس، مذ) د سکتې مرض.

**ګدور** :- (ګَ + دو + ر) (صف، مذ، مو ــــ) رذیل، پست فطرته سړی، کمینه، ارذال.

**ګدون** :- (ګَ + دُو + ن) (اس، مع) یوه لویه قبیله ده. د دې قبیلې یو فرد ته هم ګدون وائي. (ج ــ ګدانۀ) جدون هم ورته وائي. د دې قبیلې یو زوړ تاریخ په حقله اختلاف دی. یو خیال دا دی چې دا قبیله او د پنې قبیله د هندوستان نه د غورغشت علاقې ته راغلې او هلته اباد شوې. ګدانۀ له هغه ځایه د مهابن (مردان ضلع) په خواو شا کښې اباد شو او بیا څۀ خلک ترې هزارې ته لاړل. اوس هلته اباد دي. ځینې خلک وائي چې ګدانۀ او پنې د یو نېکۀ اولاد دی.

**ګده** :- (ګَ + دَ) (اس، مو ګدۍ، خوشې ګرځېدونکې ښځه، اواره ګرځه ښځه، فاحشه.

**ګدهل** :- (ګَ + دْ + هـ + لْ) (اس، مذ، ج ــــ ونه) زندان.

**لور ــــ** :- (لو + ر ــــ) تور زندان، سیاه چال.

**ګدۍ** :- (ګَ + دَ + ی) (هـ، اس، مذ) (۱) تخت، د باچا یا د راجا تخت (۲) د پیرانو مرشدانو سجاده (۳) د مالوچو وغېره نه ډک شوی هغه پوست بالښت شان چې دپاسه پرې خلک کښېني. په کرسو، بنچونو یا د بسونو د ناستې په ځایونو کښې کښېښودی شي. (۴) وړوکی بالښتکی شان چې په زخم وغېره کښېښودی شي. (۵) د ارهټ کانډۍ په سر کښې د ناستې ځای. چې عموماً د ارام دپاره پرې څادر، کمبل وغېره غونډ کړي او کښېږدي.

**ــــ نشین** :- (ــــ نَ + شي + ن) (اس، صف، مذ، ج ــ ان، مو ـ ه) په ګدۍ ناست جانشین، د بادشاه یا دپیر وغېره په ځای کښېناستونکی.

**ــــ نشیني** :- (ــــ نَ + شِي + ني) (اس، مو) په ګدۍ کښېناستنه د بادشاه یا د پیر وغېره جانشین ګرځېدنه.

**په ــــ کښېناستل** :- په تخت کښېناستل، بادشاه کېدل، جانشین ګرځېدل.

**په ــــ کښېنول** :- په تخت کښېنول، بادشاه کول، جانشین ګرځول.

**ګډ** :- (ګ + دْ) (اس، مذ، ج ــــ ان) (۱) مږ (مړ، پسۀ)، مشهور څناور چې د وړۍ وغېره دپاره ساتلی شي. اردو کښې ورته مینډها او په فارسۍ کښې ورته ګوسفند وائي. (۲) مجازاً: جنګیالی څورب سړی.

**ــــ بانۀ** :- (ــــ با + ن) د "ګډبه" جمع ده.

**ــــ بنه** :- (ــــ بَ + نَ) (اس مو، ج ــــ نې) د "ګډبه" تانیث دی. د ګډو بزو څروونکې ښځه یا جینۍ، شپنه.

**ــــ به** :- (ــــ بَ) (اس، مذ، ج ــــ بانۀ) د ګډو (بزو) څروونکی، شپون.

**ګډ** :- (ګ + ډْ) (صف، مذ، مو ــــ ه) (۱) شریک، یو ځای، یو ځای شوی (۲) د "ګډا" حالیه، په ګډا.

**ــــ توب** :- (ــــ تو + ب)

**ــــ تیا** :- (ــــ ت + یا) ګډ والی، شرکت، ګډون. ګډوډی، اختلاط.

**ــــ ژوندون / جوندون** :- یو ځای اوسېدنه.

**ــــ والی** :- (ــــ وا + لَی) (اس، مذ) (۱) ګډوډی، امېزش، شرکت، (۲) ګډوډی، ګډون، اختلاط.

**ــــ وډ** :- (ــــ وَ + ډْ) (پ، تر، صف، مذ، مو ــــ ه) (۱) غېر مرتب، لاټډې باټډې، وران ویجاړ (۲) یو بل سر شامل یا شریک شوی. یو ځای شوی (۳) چې دماغ ئې خراب وي. باتریا، پرېشانه، بدحاله.

**ــــ وډ کول** :- (۱) سره ګډول، یو ځای کول، امېزش کول (۲) پرېشانه کول، اوتر کول.

**ــــ وډ والی** :- (ــ وا + لَی) (اس، مذ، ج ــ لي) ګډ وډتوب ګډ وډی.

**ــــ وډه** :- (ــــ وَ + ډَ) (پ، تر، اس، مو، ج ــــ ې) ګډ وډې هله ګُله، بې نظمي، بې ترتیب.

**ور ــــ** :- (وَ + رْ ــــ) شامل، شریک، شریک شوی، لکه: تۀ مې مه شمېره زۀ درګډ.

**ګډ** :- (ګَ + ډْ) (اس، مذ) په ګډا، په رقص

د دنیا شرابو مست کړې بازیګر شوې
په کوتاه مېدان د عمـــر به څو ګډ ئې (حافظ)

**ګډ (۲)** :- (ګَ + ډْ) (اس، جم) د څاروو خوراک چې بوس او اوړۀ بوره وغېره سره یو ځای کړی شي.

**ــــ جوړول** :- بوس، بوره یا اوړۀ وغېره سره ګډول چې د غواؤ مېښو خوراک دی.

**ګډ** :- (ګُ + ډْ) (صف، اس، مذ، ج: ګډ ــــ یان) (۱) هغه بني ادم یا څناور څاروی وغېره چې یو ه پښه کښې ئې نقص وي او په صحیح ډول قدم نۀ شي اخستی. (ف: لنګ) (۲) په لاس کښې د نقص دپاره هم استعمالېږي.

**ګډا** :- (ګَ + ډا) (اس، مو، ج ــ ګانې، وې) رقص، ناچ، نڅا.

**ــــ کول** :- رقص کول، ګډېدل، ناچ کول.

**ګډا** :- (ګُ + ډا) (اس، ج ــ ګډاګې) ګډاګی.

**د ــــ ګډۍ وادۀ** :- (۱) د جینکو ګډیانو سره لوبه، چې د ګډۍ او د ګډا وادۀ کوي. (دغه شان تربیت حاصلوي) (۲) (طنزاً) ساده باده وادۀ چې په کښې هېڅ هَله ګُله، ډنګ ډونګ نۀ وي.

**ګډر** :- (ګَ + ډ + رْ) (اس، مذ، ج ــ ان) کورنی سپی، د کور ساتلی شوی سپی، شوم، (متل): شوم. ګډر تا زبان کوي.

**ګډری** :- (ګَ + ډ + رَی) (اس، مذ، ج ــــ ري) چرګ.

**ګډښت** :- (ګَ + ډ + ښْ / ښ + ت) (اس، مذ) ګډون، امېزش، اختلاط، ګډونه

**ګډکی** :- (ګَ + ډْ + کَی) (اس، مذ، ج ــــ کي) هغه ګاډی چې ماشومان پرې قدم اخستل زده کوي.

**ګډل** :- (ګَ + ډ + لْ) (مص) د شولو د کر دپاره په پټي اوبو او خټه کښې د مالې د ګرځولو کار. چې پټی د شولو د کر دپاره ښۀ تیار شي.

**ګډلون** :- (ګَ + ډْ + لُو + ن) (و ــــ ګډون)

**ګډله** :- (ګ + ډ + لَ) (اس، مو، ج ــ لې) د جوارو او ځینو نورو غلو د ګډو اوړو نه جوړه شوې ډوډۍ. ګډلی.

**ګډلے** :- (ګَ + ډْ + لَے) (اس ، مذ ، ج ـــ لِي) هغه ډوډۍ چې د مختلفو غلو نه پخه ولے شي۔ ګډوله۔

**ګډندي** :- (ګَ + ډَ + نْ + دَ + ی) (اس ، مو) (۱) د ګډندے تانيث دے۔ ګډېدونکې ښځه ، رقاصه (۲) ګډوال ، ګډون کوونکے۔

**ګډندے** :- (ګَ + ډَ + نْ + دَے) (اس ، مذ ، ج ــ دِي) ګډېدونکے رقاص ، بازيګر۔

**ګډنل** :- (ګُ + ډْ + نَ + لْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) املتاس ، مشهوره دوائي۔ خلاص پلے هم ورته وائي۔ لاڅړیس۔

**ګډوال** :- (ګَ + ډْ + وا + ل) (صف ، مذ ، مو ــ ه) ګډون کوونکے ، امېزش کوونکے۔

**ګډ وډول** :- (ګَ + ډْ + وَ + دَ + و + لْ) (ص) (۱) ګډ وډ کول ، پرېشانه کول ، خورَول ، تس نس کول (۲) ويجاړول ، برباد ول۔

**ګډ وډے** :- (ګَ + ډو + دَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ډِي) (۱) يو قسم خړ رنګې بوټے۔ چې د غنمو په فصل کښې پيدا کېږي۔ وړې وړې دانې کوي۔ ګاړولے۔ (۲) يو قسم ګياه ده چې د غنمو او د اوربشو په پټي کښې پيدا کېږي۔ کوزلی۔

**ګډ وډېدل** :- (ګَ + ډْ + وَ + ډې + د + لْ) (مص) (۱) ګډ وډ کېدل ، پرېشانه کېدل ، خورېدل ، لاتدې باندې کېدل (۲) بربادېدل ، ويجاړېدل ، بدحاله کېدل۔

**ګډوډېدهٔ** :- (ګَ + ډْ + وَ + ډې + د) (حمص) (۱) ګډ وډ کېدنه ، اختلاط ، شريکيدنه ، مخلوط کېدنه (۲) پرېشاني ، پرېشانه کېدنه ، اوترکېدنه (۳) په ګنه کښې ورکېدهٔ ، تېر و بېر کېدنه۔

**ګډورے** :- (ګَ + ډُو + رَے) (اس ، مذ ، ج ـــ رِي) د ګډ بچے۔

**ګډوزے** :- (ګَ + ډُو + زَے) (اس ، مذ ، ج ــ زِي) د کتې ګوتې او د مسواکې ګوتې تر مېنځه فاصله ، ګاړګوزے ، ګاڼوزے۔

**ګډوزے** :- (ګَ + ډْ + و + زَے) (صف ، مذ ، ج ــ زِي) شرير ، وران کارے سړے

**ګډوکے** :- (ګَ + ډُو + کَے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) (۱) د يوې لوبې نوم دے چې دوه کسان په کښې ولاړ وي۔ او بل د دوي نه چاپېره چورلي۔

**ګډول** (۱) :- (ګَ + ډَ + و + لْ) (مص) شريکول ، يو ځاے کول ، خلط ملط کول ، امېزش کول۔

**ځان ور ـــ** :- شريکېدل ، ځان چا سره شاملول۔ په مجلس وغېره کښې ننوتل۔

**ګډول** (۲) :- (ګَ + ډَ + و + لْ) (مص) (۱) نڅول ، په رقص کول ، (۲) په خپلو اشارو چلول۔ د خپل مطلب مطابق د چا نه کار اخيستل۔

**توره ـــ** :- (تُو + رَ ـــ) توره چلول ، توره تاوَول۔

**ګډول** :- (ګُ + ډَ + و + لْ) (مص) (۱) ګډ کول ، د چا (پېنه) يا لاس بېکاره کول (ګوډول) (۲) حاجتمن کول۔

**ګډون** :- (ګَ + ډُو + ن) (حمص) (۱) ګډونه، يو ځاے کونه ، امېزش، ملاوټ (۲) شاملېدنه ، شريکېدنه۔

**ـــ کول** :- (۱) دوه يا زيات څيزونه سره يو ځاے کول ، امېزش کول ، ملاوټ کول (عموماً په خراب معنیٰ کښې استعمالېږي يعني ښهٔ څيز سره خراب څيز يو ځاے کول) (۲) شاملېدل ، شريکېدل ، په مجلس ، ټولي ، جلسه وغېره کښې شاملېدل۔

**ـــ کوونکے** :- (ـــ کَ + وُو + نْ + کَے) (اس ، فا ، ج ـــ کي) شاملېدونکے ، شريکېدونکے ، په مجلس ، جماعت ، ډله ، جلسه وغېره کښې شاملېدونکے۔

**ـــ لرل** :- (و ـــ ګډون کول (۲))

**ګډونه** :- (ګَ + ډَ + و + نَ) (حمص) د ګډولو کار، شريکونه ، شاملونه ، يو ځاے کونه ، شرکت ، امېزش۔

**ګډونه** :- (ګَ + ډَ + ؤ + نَ) (حمص) (۱) په نڅا کونه ، نڅونه ، په رقص کونه ، (۲) د خپل منشا مطابق د چا نه کار اخستنه ، په خپلو اشارو چلونه۔

**ګډونه** :- (ګُ + ډَ + ؤ + نَ) (حمص) (۱) ګډ کونه ، پېنه يا لاس بېکاره کونه۔ (۲) محتاجه کونه۔

**ګډونے** :- (ګَ + ډُو + نَے) (و ـــ ګډون کوونکے)

**ګډوونکے** :- (ګَ + ډَ + وُو + نْ + کَے) (اس ، فا ، ج ــ کي) شاملونکے ، شريک کوونکے ، يو ځاے کوونکے ، دوه يا زيات څيزونه يو ځاے کوونکے۔

**ګډوونکے** :- (ګَ + وُو + نْ + کَے) (اس ، فا ، ج ــ کي) (۱) نڅوونکے ، په نڅا کوونکے ، په رقص کوونکے (۲) د خپل مطلب يا د مرضیٰ مطابق د چا نه کار اغيشتونکے۔

**ګډوونکے** :- (ګُ + ډَ + وُو + نْ + کَے) (اس ، فا، ج ـــ کي) ګډ کوونکے ، د چا لاس يا پېنه بېکاره کوونکے ، (ګوډوونکے) محتاجه کوونکے۔

**ګډوونے** :- (ګَ + دَ + وُو + نَے) (و ـــ ګډوونکي)۔

**ګډوه** :- (ګَ + ډْ + وَ) (هـ ، اس ، مو، ج ـــ وې) مسين يا د سلورو وړوکے شان غونډ غړۍ واله لوښے چې په کښې سبر قدرې پی وغېره راځي۔ (هـ ــ ګډوي) صراحي ، (ظفر)۔

**ګډوه** :- (ګَ + ډْ + وَ) (اس ، مو ، ج ــ وې) لوټه ، افتابه ، کوزه۔

**ګډوئ** :- (ګَ + ډْ + وَ + ئ) (هـ ، اس ، مو) (۱) (و ــ ګډوه) (هـ ــ ګډوي) (۲) ځينو ئې معنیٰ "صراحي" هم ليکلې ده۔

**ګډه** :- (ګ + ډَ) (اس ، مو ، ج ـــ ډې) مېږه ، مشهور ځناور چې د وړۍ او پيو وغېره دپاره ساتلے شي۔ فارسی کښې ورته ګوسفند ماده وائي۔ او په اردو کښې بھیڑ۔

**ګډه** :- (ګ + ډَ) (اس ، مو ، ج ــ ډې) (۱) د ګډ تانيث دے (۲) بې ضرره بني ادم۔

**ګډه** :- (ګَ + ډَ) (صف ، مو ، ج ـــ ډې) سره يو ځاے شوے ، شريک شوے ، شريک۔

**ـــ اعلاميه** :- په شريکه اعلان ، شريک او متفقه اعلان۔

**ـــ امې** :- (ـــ اَ + مَ + ی) (اس ، مو) يو قسم ګډه ده چې نر ښځې په کښې يو ځاے ګډېږي۔ اتڼ ، چې نر ښځې په شريکه نڅا کوي۔

**ـــ ګډوله** :- (ـــ ګَ + ډو + لَ) (اس ، مو) (۱) بې ترتيبي ، داسې حالت چې هر څيز په کښې بې ترتيبه او ګډ وډ پروت وي۔ (۲) سره ګډ وډ کېدنه ، بې انتظامي ، بې نظمي۔

**ـــ وډه** :- (ـــ وَ + ډَ) (صف ، مو ، ج ــ ګډې وډې) د "ګډ وډ" تانيث دے۔

د دنيا چـارې چا نۀ دي پوره کړې
عاقبت ترې پاتې کېږي ګډې وډې (حافظ)

**ـــ وډه کول** :- لاندې باندې کول ، منتشره کول ، خورول ، بربادول

عاشقي په اسلام راولي ترسه
پارسائي که ګډه وډه د پارسا (حميد)

**ـــ وډے** :- (ـــ وَ + ډے) (اس ، مذ ، ج ــ ډې) ګډ وډ توب بې ترتيبي ، تيت پرک توت۔

**په ـــ** :- (پَ ـــ) په شريکه ، يو بل سره يو ځاے ، په اتفاق سره۔

**په ـــ کاسه** :- (پَ ـــ کا + سَ) په اتفاق ، يو ځاے ، په ګډه کاسه ناست پاست

**ګډه** :- (ګُ+ډَ) (صف،اس ، مو ، ج ــــ ې / یانې) د ګُډ تانیث دے۔

**ماته ـــــ** :- (مَا + تَـــ) (اس ، ج ـــ ماتې ګډې) واړهٔ واړهٔ کارونه ، واړهٔ لوے کارونه ، مختلف کارونه۔

**ګډهل** :- (ګَ + ډْ + هَ + لْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د اوبو لوے لوښے۔

ګډهل :- (ګَ + ډْ + هَ + لْ) صف ، مذ ) هغه پټے چې د شولو د کر دپاره تیاروي۔

**ګډه هل** :- (ګَ + ډَ + هـ + لْ) (اس ، مذ ) په زمکه کښې ډوغل۔

**ګډي چرګ** :- (ګُ + ډِي + چ + رْ + ګ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) ملاچرجک ، ملاچرګک ، مشهوره مرغۍ ده۔هُد هُد ، (خیال دے چې دې مرغۍ ته د زمکې د لاندې اوبهٔ هم ښکاري)

ګډي چرګ تر مزکې لاندې اوبهٔ ویني
ولې نهٔ ویني په مزکـــه باندې لـــومه (خوشحال خان)

**ګډې** :- (ګ +ډې) (۱) د ګډه جمع (۲) د ګډه مجروري او متغیر شکل۔

**د ـــــ چیچل کول** :- (۱) ناشونے کار کېدل ، عجیبه کار کېدل (۲) مجازاً بې خونده او هیچاره سړي دلاسه د غصې یا د میړانې کار کېدل۔

**زمرے او ـــــ** :- (ز + مَ + رَے + او ـــ) د یوې لوبې نوم چې په وړو وړو کاڼو ګیټکو کولے شي۔ دوه په کښې غټ وي چې زمري بللے شي۔ او کاڼي شل واړه وي چې ګډې بللے شي۔ او چې زمرے د ګډو دپاسه واوړي او خالي کور ته ورشي نو یوه ګډه مړه شي۔

**ګډې** :- (ګ + ډې) د ګډ جمع مؤنث۔د ګډه مجروري متغیر شکل۔

**ـــــ وډې** :- (ـــــ وَ + ډې) (۱) د ګډه وډه جمع ده (۲) د ګډه وډه بدل شکل چې مغیره تورو سره راځي۔(۳) اوتې بوتې ، بې معنې او اوترې خبرې۔

**ـــــ وډې وئیل / ویشتل** :- اوتې بوتې وئیل۔ بې معنې او په پوهه کښې نهٔ راتلونکې خبرې کول۔

**ګډې** :- (ګُ + ډ + ې) (اس ، مو ) کار ، روزګار۔اکثر د لاحقې په طور نورو ټکو سره استعمالولے شي۔

**ماتې ـــــ** :- (ما + تې ـــ) د ''ماته ګډه '' جمع ده۔ واړهٔ نرې کارونه ، مختلف کارونه یا ضروریات۔

**ماتې ـــــ پوره کول** :- واړهٔ واړهٔ کارونه سرته رسول۔مختلفو ضروریات تر سره کول۔

**ګډۍ** :- (ګَ + ډَ + ی) (اس، مو) پولۍ ، فاحشه ښځه۔

**ګډۍ** :- (ګُ + دَ + ی) (اس ، مو ، ج ـــ ګانې) (۱) د وړو جینکو د لوبو څیز ، چې د چیرړو وغېره نه د بني ادم (هلک جینۍ) په شکل جوړ کړے وي۔ (۲) باډیوه ، باډهوا (۳) ښکلې وړه جینۍ (ګوډۍ)۔

**ګډۍ** :- (ګُ + ډَ + ی) (اس، مو) ګډه ښځه ، هغه ښځه چې یوه پښه (یا لاس) ئې کار نهٔ کوي ۔ او څهٔ نقص لري ۔ د ځناورو مارغانو دپاره هم استعمالېږي۔

**ګډے** :- (ګَ + ډ ے) (اس ، مذ ، ج ـــ ډي) (۱) هغه ګډ چې ښکر لري خو لم نهٔ لري (۲) د مختلفو نسلونو واله خلک۔

**ګډے** :- (ګَ + ډَ ے) (اس، مذ ، ج ـــ ډِي) ګډ سړے۔هغه سړے چې یو پښه (یا لاس) ئې کار نهٔ کوي یا په کښې نقص وي۔د ځناور، مارغانو دپاره هم استعمالېږي۔

**اَر ـــــ** :- (اَ + رْ ـــ) (اس ، مذ ، ج ـــ ډي) (۱) یوه پښه پورته نیول او په بله پښه په ټوپونو تلل۔(۲) یو لوبه چې په کښې هر یو لوبغاړے خپله یوه یوه پښه ونیسي او یو بل له دیکې ورکوي۔ کوم چې خپله پښه زمکې له ور وړي هغه بېلې۔سخے۔سخي۔

**ګډے چرګ** :- (ګُ + ډَ ے + چ + رْ + ګ) (و ـــ ګډي چرګ)۔

**ګډېدل** :- (ګَ + ډې + د + لْ) (مص) شاملېدل ، شریکېدل ، یو ځاے کېدل ، مخلوط کېدل ، خلط ملط کېدل۔

**ګډېدل** (۲) :- (ګَ + ډ ے + د+ لْ) (مص) (۱) نڅېدل ، نڅا کول ، ګډا کول (۲) مجازاً بې مطلبه لاس و پښې خوزول (عموماً طنزاً وئیلے شي۔

**اوازه ـــــ** :- (ا+وا + زَ ـــ) خبره مشهوره کېدل ، خبره خورېدل۔

**ور ـــــ** :- (۱) ورسره شاملېدل ، په مجلس ، جلسه ، معامله وغېره کښې ورننوتل۔(و ـــ شریکېدل) دخل ورکول۔

**ګډېدل** :- (ګُ + ډ ے + د+ لْ) (مص) ګډ کېدل ، پښه یا لاس کښې نقص پېدا کېدل ، پښه یا لاس بېکاره کېدل۔

**ګډېدنه** :- (ګَ + ډ ے + د + نَ) (حمص) شاملېدنه ، شریکېدنه ، سره ګډ وډ کېدنه۔

**ګډېدنه** :- (ګَ + ډ ے + د + نَ) (حمص) (۱) نڅېدنه ، نڅا کونه ، رقصېدنه ، رقص کونه (۲) لاس و پښې خوزونه (طنزاً)۔

**ګډېدونکے** :-(ګَ + ډ ے + دُو + ن + کَے) (اس ، فا ،ج ـــ کي) شاملېدونکے شریکېدونکے ، یو ځاے کېدونکے ، مخلوط کېدونکے۔

**ګډېدونکے** (۲) :- (ګَ + ډ ے + دُو + ن + کَے) (اس ، فا ، ج ـــ کي) نڅا کوونکے ، نڅېدونکے ، رقص کوونکے ، رقاص۔

**ګډېدونکے** :- (ګُ + ډ ے + دُو + نْ + کَے) (اس، فا ، ج ـــ کي) ګډ کېدونکے ، د پښې نه معذور کېدونکے۔

**ګډېر** :- (ګَ + ډ ے + ر) (اس ، فا ، ج ـــ ونه) ګډون ، اختلاط ، سره ګډ وډ ، امېزش ، الودګي۔

**ګند ـــــ** :- (ګَ + نْ + د ـــ) (اس ، جم) بېکاره او خراب ګډ وډ څیزونه۔

**ګډېر** :- (ګَ + نْ + ډ ے + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د اوچو وښو یو ګېډه ے چې سره ننښتے رانښتے وي۔

**ګډېره** :- (ګَ+ ډ ے + رَ) (اس ،مو،ج ـــ رې) ګډ وډ ، مخلوط، ګاډېره۔

**ګډېله** :- (ګ + ډ ے + لَ) (۱) د ګډوله او ګډولیزه (۲) جمع ، اجتماع ګډون۔

**ګډېوه** :- (ګ + ډې + وَ) (اس، مو ، ج ـــ وې) کڅوړه ، کیسه۔

**ګذار** :- (ګوُ + دا + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ضرب ، وهنه ، (اُر : چوټ ، مار ) (''ز'' سره هم لیکلے شي)

**ـــــ کول** :- (۱) ضرب (ور) رسول (په لاس یا په لرګي یا په بل کوم څیز) وهل۔ په توره وهل (۲) ټک ورکول (۳) ویشتل۔

**ـــــ ورکول** :- ضرب (ور) رسول ، وهل (په لاس ، لرګي یا په بل کوم څیز ) سُوک یا څپېړه ورکول (ګذار ورکول)۔

**ګذار** :- (ګو + ذا + ر) (ف ، حمص) (۱) د ''ګذاشتن'' مصدر نه حاصل مصدر ، پرېښودنه (۲) لاحقه۔چې د ځاے معنی ورکوي۔لکه : راه ګذار۔(۳) لاحقه۔چې د (ادا) کولو معنیٰ ورکوي۔لکه : نمونځ ګذار۔ (''ز'' سره هم لیکلے شي)۔

**ګذارش** :- (ګُو + زا + رِ + شْ) (ف ، اس ، ج ـــ ونه / تٍ) (د احوال په عاجزۍ سره) بیان عرض ، عرض معروض ، درخواست ، التماس (''ر'' سره هم لیکلے شي)۔

**ـــــ کول** :- (احوال په عاجزۍ سره بیانول۔عرض کول ، درخواست کول ، خواست کول ، التماس کول (''ز'' سره هم لیکلے شي)۔

**ـــــ نامه** :- (ـــ نا + مَ) (ف تر ، اس ، مو ، ج ـــ مې) درخواست عرض ، عاجزۍ سره خواست۔

**ګذارل** :- (ګو + ذا + ر + لْ) (مص) (۱) ادا کول۔لکه : نمونځ ګذارل۔ (''ګزارل'' هم لیکلے شي)۔

**ګذارنه** :- (ګو + ذا + ر + نَ) (حمص) (۱) ادا کونه (۲) پرېښودَنه۔

(''گزارنه'' هم ليکلې شي).

**گذارول** :- (گو + ذا + رَ + و + لْ) (مص) غورزول ، غورځول ، (ور) ويشتل ، (د لاسه) اچول. (''ز'' سره هم ليکلې شي).

**گذاره** :- (گُو + ذا + رَ) (اس ، مو ، ج ـــ رې) وخت تېرے ، د وخت تېرولو سامان يا خرڅ ، گذران ، (''ز'' سره هم ليکلې شي).

**ـــــ کول** :- (۱) په کم خرڅ يا امدن کښې خپل وخت تېرول. وخت تېرے کول .(۲) زغم کول ، برداشت کول ، د سختۍ نه کار نۀ اخيستل.

**ـــــ نۀ کېدل** :- (۱) د خرڅ يا د امدن کمے ''بودل'' په کم امدن کښې خرڅ نۀ پوره کېدل. (۲) چا سره يو ځاے وخت نۀ تېرېدل لکه : فلانئ سره مې نوره گذاره نۀ کېږي.

**ښۀ ـــــ کول** :- ښۀ وخت تېرول ، ښۀ سلوک کول. په ښۀ طريقه (يو ځاے) اوسېدل.

**گذارېدل**:- (گو + ذا + رې + د + لْ) (مص) (۱) غورزېدل ، غورځېدل ، پرې وتل ، لوېدل (۲) ادا کېدل ، پوره کېدل (''ز'' سره هم ليکلې شي)

**گذر** :- (گُ/ گو +ذَ + رْ) (ف ، اس ، مذ) تېرېدنه ، پيښنه.

**ـــــ کول** :- تېرېدل ، پيښنه کول

عـــاشقۍ مې په زړۀ وکړلو گــذر بيا

ښلتانۀ مې لمبې بلې کړې په سر بيا (رحمان بابا)

**ـــــ کېدل** :- پيښنه کېدل ، په لاړ تېرېدل.

**گذران** :- (گو + ذ + را + ن) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) وخت تېرے يو ځاے وخت تېرونه ، گذاره (۲) خرڅ ، گذر اوقات (۳) ژوند / جوند تېرونه ، ژوند / جوند کونه.

**ـــــ کول** :- (۱) وخت تېرول ، وخت تېرے کول. ژوند/ جوند کول. (۲) گذاره کول ، په کوم خاص امدان کښې خپل خرڅ پوره کول.

**اجتماعي ـــــ** :- (ا + جْ + ت + ما + عي ـــ) يو ځاے اوسېدنه. په گډه اوسېدنه ، يو ځاے استوگنه.

**گذرانول** :- (گُ + ذْ + را + نَ + ؤ + لْ) (مص) تېرول ، گذران کول ، گذاره کول ، برداشت سره تېرول.

**گذشت** :- (گُ + ذَ + شْ + ت) (ف ، حمص) (۱) تېرېدنه (۲) (فعل) تېر شۀ (''ز'' سره هم ليکلې شي)

**گذشتني** :- (گُ + ذَ + شْ + تَ + نِي) (ف ، تف) تېرېدونکے ، نۀ پاتې کېدونکے.

**گذشته** :- (گُ + ذَ + شْ + تَ) (ف، اس ، مف ، ج ـــ گان) (۱) تېر شوے ، تېر ، ورومبے (۲) پخوانے ، پخوانۍ ، لرغون (۳) (خصوصاً د جمعې په شکل کښې) تېر شوي خلک ، مړۀ شوي خلک ، پخواني خلک.

**گر** :- (گ + رْ) (اس ، صوت) (۱) د جامې د شلېدو اواز (۲) د گړگړ په شان اواز.

**له ـــــ ورکول** :- کپړا په زور سره شلول چې اواز ترې پيدا شي.

**گر** :- (گَ + رْ) (اس ، مذ) (۱) مصيبت ، تکليف (۲) ستم ، جبر ، لکه د ظالم په گر اخته شي (۳) غم ، فکر.

**گر** (۲) :- (گَ + رْ) (اس ، مذ) خارښت ، د خارښت مرض.

**گر** :- (گَ + رْ) (ف ، لاحقه ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) د فارسۍ لاحقه ده چې اسمونه سره لگولې شي. او د جوړوونکي ، کوونکي معنې ورکوي. لکه زرگر ، اهنگر.

**گر** :- (گُ + رْ + ه ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) مختصره قاعده ، کليه ، اصول ، قاعده ، د حساب قاعده چې په کښې غلطي نۀ راځي.

**ـــــ استعمالول**:- لنډه قاعده استعمالول. بې خطا طريقه استعمالول

**ـــــ زده کول** :- لنډه مختصر شان د حساب قاعده زده کول. بې خطا طريقه زده کول.

**ـــــ ښئيل** :- لنډه يا مختصره قاعده ښودل ، بې خطا طريقه ښودل.

**گرا** :- (گَ + را) (اس ، مذ ، ج ـــ گان) (۱) نوکر ، غلام (۲) نائي ، ډم (۳) يو قسم ببلچه.

**گراتي** :- (گ + را + تَ + ی) (اس، مو) يو قسم کُرته.

**گراټه** :- (گ + را + ټَ) (اس ، مو ، ج ـــ ټې) سپياکه ، ټپے.

**گراج** :- (گَ + را + ج) (انگ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د موټر وغېره د ودرولو لويه کوټه.

**گرابے** :- (گ +را + ر + بے) (اس ، مذ ، ج ـــ ي) د مرۍ يا د غاړې وړوکے طوق.

**گراری** :- (گَ + را + رَ + ی) (اس ، مو) يو قسم پرزه چې بهر ئې غاښ جوړ شوي وي. په دې غاښو کښې (د ارټ په شان) بله گراری گرځي.

**گراف** :- (گ +را+ف) (انگ،اس،مذ ،ج ـــ ونه) (۱) ليک (۲) نقشه ، هغه نقشه چې په چارخانه کاغذ باندې د کوم کار د ترقۍ وغېره په حقله جوړه شوې وي. (۳) د ټکو او کرښو په ذريعه د څيزونو د رابطې د ښودلو شکل.

**اټو ـــــ** :- (آ + ټو ـــ) (انگ ، اسم ، ج ـــ ونه) د لاس ليک ، دستخط وغېره چې د کوم لوے يا مشهور سړي نه د يادگار په طور اخستے شوے وي.

**فوټو ـــــ** :- (انگ ، مذ ، اس، ج ـــ ونه) تصوير چې په کېمره اخستے شوے وي. فوټو.

**فونو ـــــ** :- (فو + نو ـــ) (انگ ، اس ، مذ) د اواز رېکارډ کوونکے مشين.

**گرافک ارټ** :- (گْ + را + ف + کْ + آ + رْ + ټْ) (انگ ، اس، صف) هغه هنر چې په کښې د گرافونو د جوړولو کار کولے شي.

**گرالبه** :- (گ +را+ل + بَ) (اس ، مو ، ج ـــ بې) د غاړې وړوکے طواق.

**ـــــ تړل** :- د مرۍ يا د غاړې طوق يا پټه تړل.

**گرام** :- (گ + را + م) (هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) کلے ، ابادي ، ښاريه ، بانډه ،د کلو د نومونو سره راځي. لکه : اوډي (هوډي) گرام، بټگرام (اصلاً دا د هندۍ ټکے دے. چې وروستو بيا په گاؤں او گام هم بدل شوے دے.

دا جهان د مسافرو يو رباط دے

تلۀ دي تلۀ دي له دې گرامه راشه راشه (رحمان بابا)

**گرام** :- (گ +را+م) (انگ،اس ،مذ ، ج ـــ ونه) يو ډېر سپک شان وزن.

**گراما فون** :- (گ + را + ما + فو + ن) (و ـــ گراموفون).

**گرامر** :- (گ + را + مَ + رْ) (انگ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د ژبې/ ځبې د قواعدو کتاب ، د صرف و نحو کتاب.

**ـــــ پوه** :- (ـــــ پو + ه) (انگ ، پ ، اس، صف ، ج ـــ ان) په گرامر پوهېدونکے، د ژبې قواعدو پوهان ، د صرف و نحو پوهان.

**گرامري** :- (گ + را + مَ + رِي) (انگ ، پ ، صف) د گرامر په لحاظ سره. د ژبې د قواعدو په لحاظ سره ، د صرف و نحو په لحاظ سره ، لکه : د ژبې گرامري تشکيل.

**گراموفون** :- (گْ + را + مو + فو + ن) (انگ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه )ريکاټيې باجه ، د ټيکلو باجه.

**گرامي** :- (گ + را + مي) (انگ ، پ ، صف) د گرام (وزن) په لحاظ سره. گرام سره تعلق لرونکے.

**گرامي** :- (گ + را + مي) (ف ، صف) بزرگ ، عزتمن.

**ـــــ قدر** :- (ـــــ قَ + دَ + رْ) (ف تر ، صف) ډېر قدر واله ، عزتمند ، د مشرانو او افسرانو وغېره دپاره په مخاطبه کښې يا په خطونو وغېره

کښې استعمالېږي.

**ـــــ نامه** :- (ـــــنا + مَ) (ف تر، اس، مو، ج ـــــ مې) د قدر وړ لیک (خط)، د مشرانو، بزرگانو خط.

**گران** :- (گ + را + ن) (ف، پ، صف) (۱) مشکل، د اسان ضد (۲) زیات قیمت واله، د ارزان ضد (۳) عزتمند، درونډ (۴) خوږ، عزیز (۵) معشوق، محبوب

زما د گران گوتې نرۍ
تـــر غـرور اووته لاړې (غاړه)

**ـــــ بها** :- (ـــــبَ + ها) (ف تر، صف) (۱) ډېرې بیعې واله، زیات قیمت واله، قیمتي (۲) د ډېر قدر وړ.

**ـــــ توب** :- (ـــــتو + ب)

**ـــــ تیا** :- (ـــــت + یا) (اس، مذ) گران والے، په قیمت، وزن یا قدر کښې زیاتوالے.

**ـــــ فروش** :- (ـــــفَ / فِ + رو + شْ) (ف تر، صف، مذ، ج ـــــ ان، مو ـــــ ه) د څیزونو په اوچته بیعه خرڅوونکے، زیات قیمت اخیستونکے.

**ـــــ فروشي** :- (ـــــفَ / فِ + رو + شي) (ف تر، اس، مو) څیزونه د اصل قیمت نه په زیات قیمت خرڅول.

**ـــــ گڼل** :- (۱) درونډ گڼل، عزت مند گڼل. (۲) خوږ یا عزیز گڼل (۳) زیات قیمت واله گڼل.

**ـــــ مایه** :- (ـــــما + یَ) (ف تر، صف) ډېرې سرمایې واله، مجازاً د ډېر قدر وړ، یا ډېر قیمتي.

**ـــــ والے** :- (ـــــوا + لَے) (اس، مذ) په قیمت، وزن یا قدر عزت کښې زیاتوالے، گراني.

**خاطر ـــــ بودل** :- عزت، قدر بودل، لحاظ پاس کول،

چــې د زړهٔ هسې پرې نـــاز کوه دلبـره
په خوشحال دې خاطر گران دے لکه وو (خوشحال خان)

**گرانټ** :- (گ + را + ن + ټ) (انگ، اس، مذ، ج ـــــ ونه) عطیه، هغه خاص رقم کوم چې چا ته د عطیې په طور ورکولے شي.

**گرانښت** :- (گ + را + ن + ښْ / شْ + ت) (حمص) (۱) گران والے، گرانتوب (۲) په قیمت کښې زیاتوالے، گراني، په نرخونو کښې زیاتے (۳) قدرمندي، احترام، عزت (۴) مینه محبت، لکه: د وطن گرانښت (۵) دشواري.

**گرانو** :- (گ + را + نو) (اس، مو) معشوقه، محبوبه

رب د واوره کـــه د غــرو
چې غر رویلے کښې گرانو (غاړه)

**گرانول** :- (گ + را + نَ + ؤ + لْ) (مص) (۱) د اسانول په مقابله کښې دشواره کول، سختول (۲) نرخ اوچتول، بیعه (بیه) زیاتول.

**گرانه** :- (گ + را + نَ) (حرف ندا) بل ته د غږ په طور وئیلے یا لیکلے شي. لکه: زما گرانه. یعني په ماگرانه، قدرمنه، یا خوږه (انگ: مائي ډیئر my dear)

**گرانه** :- (گْ + را + نَ) (صف، مو، ج ـــــ نې) د گران تانیث دے.

**ـــــ پېښول** :- مشکل کار یا خبره ور دوڅارول، تکلیف پېښول، سخته وراندې کول.

عاشقي کړې راته پېښې هسې گرانې
چې ئې گرانې کړې د مرگ راته اسانې (حمید)

**په ـــــ** :- په مشکله، په تکلیف او زیار سره، په محنت مشقت سره.

**گراني** :- (گ + را + نِي) (اس، مو) د نرخونو اوچتېدل، د څیزونو د قیمتونو زیاتېدنه.

**گرانېدل** :- (گْ + را + نے + د + لْ) (مص) (۱) د اسانېدل په مقابله کښې دشواره کېدل، سختېدل، کوم کار وغېره زیات محنت یا زیار غوښتل (۲) نرخ اوچتېدل، بیه (بیعه) زیاتېدل.

**گرانېدهٔ** :- (گ + را + نے + د) (حمص) (و ـــ گرانښت)

**گراؤنډ** :- (گ + را + ؤ + نْ + ډ) (انگ، اس، مذ، ج ـــــ ونه) مېدان، زمکه، فرش، بنیاد، د لوبو مېدان.

**گراوه** :- (گ + را + وَ) (اس، مو، ج ـــ وې) خرخره.

**گراهه** :- (گ + را + هَ) (اس، مو، ج ـــ هې) بېل، یُوم.

**گرای** :- (گ + را + یِ) (لاحقه) لاحقه ده. د "چند" فارسي په معنٰی کښې راځي. لکه: دوه گرایه (دو چنده) لس گراه (لس چنده).

**گرباز** :- (گَ + رْ + با + ز) (اس، مع) د صافیو په څلورو ښاخونو کښې یو ښاخ دے. د مهمندو سره اوسي. د دوي (گربازو) دوه څانگې دي. عیسٰی خېل او حبیب زی.

**گربت** :- (گُ + رْ + بَ + تْ) (اس، مذ، ج ـــ ان) عقاب، باتور.

**گربته** :- (گُ + رْ + ب + تَ) (اس، مو، ج ـــ تې) د گربت تانیث دے.

**گربړه** :- (گَ + رْ + بَ + ړَ) (اس، مو، ج ـــ ړې) هغه زمکه یا پټے چې په کښې غټې غټې لوټې وي. هغه سادین چې غټې غټې لوټې لري. کانړو واله زمکه.

**گربشول** :- (گَ + رْ + بَ + شو + ل) (اس، مذ، ج ـــــ ونه) بې نظمه، بې ترتیبه.

**گربل** :- (گ + رْ + ب + لْ) (و ـــ گر بېل)

**گربل** :- (گُ + رْ + ب + لْ) (و ـــ گرمل)

**گربه** :- (گُ + رْ + بَ) (ف، اس، مو) پیشو

په فرېب د ځان غریب کړ و عالم ته
د هوا مـــارغهٔ به څو اخلې گربه ئې (حافظ)

**ـــــ خوراک** :- (ـــــخو + رَ + ک) (اس، مذ) یو قسم وابنهٔ دي.

**ـــــ مسکین** :- (ـــــ ئې) مِ + سْ + کي + ن) (ف، تر، صف) عاجزه پیشو، مجازاً هغه سړے چې د ځان نه ئې عاجز او کمزورے جوړ کړے وي. خو په اصل کښې داسې نهٔ وي.

**گربیټ** :- (گَ + رْ + ب + ټْ) (اس، مذ، ج ـــ ونه) د جوارو ډوډۍ، سُکړک، سوړسک.

گر بېل :- (گُ + رْ + ب + لْ) (مص) رفو، د جامې شلېدلے ځاے په یو خاص طریقه گنډل.

**گربینے** :- (گَ + رْ + بي + نَے) (اس، مذ) د مچو گک، د مچو گبین.

**گرپے** :- (گ + رْ + پَے) (اس، مذ) یو قسم بوټے چې جرړې ئې نازکې وي.

**گرت** :- (گ + ر + تْ) (اس، مذ، ج ـــ ونه) (۱) د دوو گوتو ترمېنځه فاصله، خصوصاً د کټې گوتې او د مسواکې (د شهادت) د گوتې تر مېنځه فاصله (۲) د وني د تنې او د ښاخ تر مېنځه زاویه (۳) عمومي طور سره د لاسونو او د پښو تر مېنځه فاصلو ته هم وائي.

**په ـــــ کښې ځایول** :- (۱) په تنگ ځاے کښې ځایول، کنایةً په دباؤ کښې راوستل (۲) بې جوړه او بې مناسبت کار کول. د حماقت کار کول. (ظفر)

**په ـــــ کول** :- (۱) په دوو گوتو کښې نیول (۲) د غشي د ویشتو دپاره غشے په گوتو کښې نیول.

**په ـــــ نیول** :- د دوو گوتو تر مېنځه نیول.

گـرج :- (گ + رَ + جْ) (انگ، اس، مذ) کینه، بغض.

**گرجا** :- (گ + رْ + جَ) (اس، مو، ج ـــ جې) د عیسائیانو عبادت خانه، کلیسا.

**گرجستان** :- (گَ + رْ + جِ + سْ + تا + نِ) (اس، مع) په سوویټ روس کښې يو رياست

**گرجمن** :- (گ رَ + جْ + م + نْ) (انگ ، پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) کينه لرونکے ، کينه ور ـ

**گرځ** :- (گ + رْ + (د) + ز) (حمص) د گرځېدل (گرځېدل) حاصل مصدر ـ گرځېدنه ، گرځېدنه ، (گرځ)ـ

**گرځ** :- (گَ + رْ + (د) ز) (و ـــ گرد)

**گرځمن** :- (گَ + رْ + (د) ز + مُ + نْ) (و ـــ گرځنده) (گرځنده)ـ

**گرځند** :- (گ + رْ (د) + ز + نْ + د) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) گرځېدونکے ، چورلېدونکے (۲) گرځوونکے ، گرځاند ـ

**گرځنده** :- (گَ + رْ + (د) + ز + نْ + دَ) (اس فا) گرځېدونکے ، گرځېدونکے ، گرځنده ، سېلانے ، (گرځنده)ـ

**گرځندي** :- (گ + رْ + (د) ز + نْ + دَ + ي) د گرځنده تانيث دے ـ (گرځنده)ـ

**گرځندے** :- (گ + رْ + (د) - ز + نْ + دَ ے) (اس، مذ ، ج. دي) (۱) گرځېدونکے ځيز ، څرخي ، څرخ (۲) کټ پېر ، د لارې کوروالے ، چېرته چې يوه لار په بل طرف تاوېږي ـ (گرځندے)ـ

**گرځنے** :- (گَ + رْ + (د) ز + نَے) (اس، مذ ، ج ـــ ي ، مو ـــ ئ) (۱) د لارې کټ پېر (۲) هغه کوغالے کوم چې د کچرې په مېنځ کښې د غورو دپاره جوړولے شي (۳) څرخي ، (گرځنے)ـ

**گرځول** :- (گ + رْ + (د) زَ + ؤ + لْ) (مص) (۱) چکر ورکول، تاوَول ، (۲) د يو ځاے نه بل ځاے ته بوتلل يا اوړل ـ

**گرځون** :- (گ + رْ + (د) زُو + نْ) (اس، مذ) قَے ، التي ، باقي (گرځون)ـ

**گرځونه** :- (گَ + رْ + (د) زَ + و + نَ) (و ـــ گرځونه)ـ

**گرځوونکے** :- (گَ + رْ + (د) زَ + وو + نْ + کَے) (و ـــ گرځوونکے)ـ

**گرځېدل** :- (گَ + رْ + (د) زې + د + لْ) (مص) (۱) د يو ځاے نه بل ځاے ته تلل (۲) سېل کول (۳) واپس کېدل ، بېرته تلل (۴) انکار کول ـ

**گرځېدنه** :- (گَ + رْ + (د) زې + د + نَ) (و ـــ گرځېدنه)ـ

**گرځېدونکے** :- (گَ + رْ + (د) زې + دُو + نْ + کَے) (و ـــ گرځېدونکے)ـ

**گرځېدۀ** :- (گ + رْ + (د) زې + د) (و ـــ گرځېدۀ)ـ

**گرچاپېر** :- (گ + رْ + چا + پې + ر) (اس ، ظر) چارچاپېره ، گرد چاپېر ، گېر چاپېر ـ

**گرد** :- (گ + رْ + د) (پ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) غونډ ، گول

تنگې خولې لکه غوټۍ هوار غابنونه
سرئې گـرد پـه تـورو زلفو عنبرينې (خوشحال خان)

**گرد** :- (گ + رْ + د) (صف، مو ـــ ه) ټول ، همه ، تمامي ، کلهم ، واړه ، (گرد)

ـــــ **چاپېر**(ه) :- ځلورو طرفونو ته ، چارچاپېر(ه) ، گېرچاپېر (ه)

ـــــ **گرد کېدل** :- غونډ غونډ کېدل ، ټولي ټولي کېدل ، د خلکو داسې جمع کېدل چې ځاے په ځاے ئې جدا جدا ټولي جوړ شوي وي ـ

ـــــ **لمے** :- (ـــ ل + مَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ي) يو قسم بوټے دے چې زيړ گلونه کوي

ـــــ **مخے** :- (ـــ م+ خَے) (صف ، مذ ، ج ـــ خي) غونډ مخ واله ، غونډ مخے ـ

ـــــ **و پيش** :- (ـــ (دو) + پې + ش) چاپېره او وړاندې خواو شا (کښې) چارچاپېره

ـــــ **و نواح** :- (ـــ (دو) نَ + وا + ح) (ف تر ، اس ظر) چاپېره او خوا کښې ، چارچاپېره ، خواو شاه کښې ـ

**گرد** :- (گَ + رْ + د) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) دوړه ، غُبار ، خاوره ـ

ـــــ **افشاني** :- (ـــ اَ + فْ + شا + نِيْ)

ـــــ **فشاني** :- (ـــ فَ + شا + نِيْ) دوړې څنډنه ، گرده څنډنه ـ

ـــــ **الود** :- (ـــ آ + لُو + د) (ف تر ، صف، مذ ، مو ـــ ه) د گرد يا د دوړو نه ډک ، هغه چې ډېرې دوړې پرې پرېوتې وي ـ

ائينه غوندې مخ روڼے شه و يار ته
دا خودي د زړگي مخ کا گرد الود (حميد)

ـــــ **باد** :- (ـــ با + د) (ف ، تر ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) د پېريانو ډولۍ ، هغه تاوېدونکے هغه چې دوړو نه ډکه وي ـ (د گرمۍ په موسم کښې پيدا کېږي ـ) بگوله ـ

**گرد** :- (گُ + رْ + د) (ف، اس، مذ ، ج - ان) (۱) پهلوان ، شه زور (۲) بهادر ، توريالے ، شجاع ـ

**گرداب** :- (گ + رْ + دا + ب) (ف، اس، مذ ، ج ـــ ونه) غولۍ ، د سيند په مېنځ کښې هغه ځاے چېرته چې اوبۀ تاوېږي ـ (کوم ځيز چې هلته ورشي ـ هغه هم ورکښې تاوېږي او په ښکته ځي)ـ

**گرداړے** :- (گ + رْ + دا + ړَے) (اس، مذ ، ج ـــ ړي) د خاورې يا د کاڼي نه جوړ شوے غونډ ځيز (گولۍ) چې ماشومان ورسره لوبې کوي ـ د خاورې يا د کاڼي مردکے ، غونډارے ـ

**گرداگرد** :- (گ + رْ + دا + گ + رْ + د) (ف تر ، ظر) چارچاپېر ، گېرچاپېر ـ

**گردان** :- (گَ + رْ + دا + ن) (ف ، صف ، مو ـــ ه) (۱) چورلېدونکے تاوېدونکے (۲) چورلوونکے ، تاووونکے (۳) بېر ته گرځېدونکے ، پستنه کېدونکے (۴) (گرېمر) د مصدر نه د فعلونو جوړول (۵) د کوم لفظ يا لفظونو تکرار کول يا بيا بيا وئيل ، تمرين ـ

ـــــ **کول** :- د يو لفظ يا لفظونو يا د جملو وغېره بيا بيا (په ترتيب سره) وئيل ـ

**رو (ے)** ـــ :- (رُو (ے) ـــ) مخ گرځوونکے ، مخ اړونه ، انکار ـ

**گردانک** :- (گَ + رْ + دا + نَ + کْ) (ف ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) پلېټن د جولاگانو يوه اله ـ

**گردانول** :- (گَ + رْ + دا + نَ + ؤ + لْ) (مص) گردان کول ، د مصدر د مختلفو صيغو په تکرار سره لوستل (يا يادول) بيا بيا وئيل ، تکرار کول ـ

**گرداني** :- (گَ + رْ + دا + نِي) (صف) گرځېدونکے ، تاوېدونکے ، چورلېدونکے ـ

**گردانېدل** :- (گَ + رْ + دا + نې + د + لْ) (مص) (۱) دکوم لفظ يا د جمعې وغېره بيا بيا وئيلے کېدل ، گردان کېدل ، تکرارکېدل (۲) پستنه کېدل ، بېرته گرځېدل ـ

**گرداؤ** :- (گَ + رْ + دا + و) (و ـــ گرداب)ـ

**گرداور** :- (گ + رْ + دا + ؤ + رْ) (اس ،مذ ، ج ـــ ان) د مال په محکمه کښې يوه عهده چې پټواريانو دپاسه او د تحصيلدار د لاندې وي ـ

**گرداوے** :- (گ + رْ + دا + وَے) (و ـــ گرداب)

**گردجن** :- (گَ + رْ + د + ج + نْ) (صف، مذ ، مو ـــ ه) گرد الود ، د دوړو نه ډک ـ

**گردش** :- (گَ + رْ + د + شْ) (ف، اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) چکر ، چورليدۀ ، چورلېدنه ، دور خوړنه ، دوره (۲) گشت ، گرځېدنه (۳) پېر ، بدلېدونه ، تغير (۴) بد نصيبي ، بدقسمتي ـ

ـــــ **کول** :- چورلېدل ، تاوېدل ـ

ـــــ **گاه** :- (ـــ گا + ه) (ف تر ، ظر ، ج ـــ ونه) د گرځېدلو يا د سېل ځاے ـ

**په ـــــ کښې راتلل** :- حالات بدلېدل ، بد حالات راتلل ، مصيبت ، بدقسمتي راتلل ـ عموماً ستورے يا طالع سره استعمالېږي ـ

**د اسمان ـــــ** :- (د ، ا + سْ + ما + ن ــــ) د اسمان چورلېدنه ، مجازاً د حالاتو بدلېدنه ، خصوصاً د ښهٔ حال نه بد حال ته راتلنه ، بد قسمتے۔د قسمت پېر۔

**د زماني ـــــ** :- (د ، زَ + ما + نيِ ــــ) (اس ، مذ ، ج ـ ونه) د زمانې بدلېدنه ، بد قسمتے۔

**کاليز ـــــ** (د زمکې) :- د زمکې د نمر (نور) نه چارچاپېره چورلېدنه (چې څلور موسمونه ترې زېږي)۔

**محوري ـــــ** (د زمکې) :- د زمکې د خپل محور نه چاپېره چورلېدنه ، (چې ورځ او شپه ترې پېدا کېږي)۔

**گردک** :- (گ + رْ + دَ + کْ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) غونډ ، مدور۔

**گردک** :- (گَ + رْ + دَ + کْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) تبر ، چې لرگي پرې ماتوي۔

**گردکه** :- (گَ + رْ + دَ + کَ) (صف ، مو ، ج- کې) (۱) دگرد کمؤنث (۲) دائره

**گردکے** :- (گ + رْ + دَ + کَے) (اس ،مذ ، ج ـــ کي) (۱) غونډ څيز ، غونډارے (۲) د لوبو غونډه لوبه گولۍ ، مړدکے۔

**گردگو** :- (گَ + رْ + د + گو) (اس ، مذ) الو ، د الوگانو يو غټ قسم۔

**گردماچو** :- (گَ + رْ + د + ما + چو) (اس ، جم) د دارو نوم دے ، عربي ، عصب

**گردن** :- (گَ + رْ + د + نْ) (ف ، مذ ، ج ـــ ونه) مرۍ ، غړۍ۔

**ـــــ فراز** :- (- فَ + را + ز) (ف تر ، صف ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) (۱) هسکه غړۍ لرونکے ، فخر کوونکے ، فاخر (۲) مغرور ، کبرجن (۳) حکم نهٔ منونکے ، نافرمانه۔

**ـــــ کښېښودل** :- غاړه کښېښودل ، منل ، تسليمول۔

**ـــــ نهاد** :- (ـــ نِ + ها + د) (ف تر ، صف ،مذ ، ج ـــ ان ، مو ـ ه) غاړه کښېښودونکے ، فرمانبردار ، حکم منونکے ، غاړه بسته۔

**په ـــــ وړل** :- په ذمه وړل ، ذمه واري اخيستل ، جواب ده گرځېدل۔

**گردنو** :- (گ + رْ + د + نو) (۱) د گردنۍ جمع ده (۲) د گردنۍ بدل شکل دے چې متغيره تورو سره راځي۔

**ـــــ ترتلل** :- چنغول بازۍ له تلل۔

**گردنۍ** :- (گ + رْ + د + نَۍ) (اس ، مو) چنغول بازي۔

**گردنۍ** :- (گَ + رْ + دَ + نَ + ی) (اس ، مو) چرمکۍ ، د لرگي يا د څرمنې هغه حلقه چې د تنبو د ستنې په سر کښې لگولے شي۔

**گردنۍ** :- (گَ + رْ + دَ + نَ + ی) (اس ، مو) (۱) په غاړه کښې د اچولو هغه خاص پټه چې په کښې د کارتوسونو دپاره خانې جوړې شوې وي۔ (۲) هغه پټه چې د اوبنې يا د بل کوم څناور په غاړه کښې د ښکلا دپاره اچولے شي۔

**گردو** :- (گ + رَ + دُو) (اس ، مذ ، ج ـــ گان) يو قسم تبشۍ ده چې پوټي پرې اوباسلے شي۔

**گردوکے** :- (گ + رْ + دُو + کَے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) چرمکے ، د څرمنې هغه حلقه شان چې د تنبو په ستن لگولے شي۔گردۍ۔

**گردول** :- (گ + رْ + دَ + و + لْ) (مص) راټولول ، جمع کول۔

**گردوم** :- (گ + رْ + دُو + م) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) چوړ ، گردونه۔

**گردومه** :- (گَ + رْ + دُو + مَ) (اس ، مو ، ج ـــ مې) هاله ، شپول (د سپوږمۍ)۔

**گردون** :- (گَ + رْ + دُو + ن) (ف ، اس ، مذ) اسمان ، هسک (لفظي معنې ئې گرځېدونکې يا تاوېدونکې ده)

**د ـــــ گردش** :- (۱) د اسمان گرځېدونه ، د اسمان چورلېدنه ، (۲) د قسمت پرې ، د بخت گرځېدونه۔

د گردون گردش مې راست له زيسته نهٔ شهٔ
زر ئې وويستم د وصل له ايوانه (حافظ)

**گردونه** :- (گَ + رْ + دُو + نَ) (اس ، مو) هغه ښځه چې دوه کسان ئې دعوېدار وي۔او دريم کس ته په نکاح کړے شي۔چې جگړه ختمه شي۔

**گردونې** :- (گ + رْ + دو + نې) (و ـــ گردنې)

**گرده** :- (گ + رْ + دَ) (صف ، مو ، ج ـــ دې) ټوله ، همه ، تمامې۔

**ـــــ دنيا** :- (ـــ دُ + نْ + يا + ن)

**ـــــ نړۍ** :- (ـــ نَ + ړَ + ی) درسته دنيا ، ټوله دنيا۔

**ـــــ ورځ** :- (ـــ و + رَ + (دْ) زْ) درسته ورځ ، ټوله ورځ ، تمامه ورځ۔

**گرده** :- (گ + رْ + دَ) د "گرد" تانيث دے۔

**گرده** :- (گ + رْ + دَ) (اس ، مو ، ج ـــ دې) يو قسم خمبيره ډوډۍ۔

**گرده** :- (گَ + رْ + دَ) (اس ، مو) د چرسو يو ادنیٰ قسم۔

**گرده** :- (گُ + رْ + دَ) (اس ، مو ، ج ـــ دې) (۱) د بني ادم او د حېواناتو يو دننه عضو۔چې کار ئې د وينې نه يورک ايستل يا متيازې ويستل او مثانې ته ورلېږل دي۔پختورگے ، بډوکے (۲) مجازاً : جرات ،همت۔

**گردي** :- (گُ + رْ + دي) (صف) غونډ ، مدور ، گول۔

**ـــــ شکل** :- (ـــ شَ + کْ ، کَ + لْ) غونډ شکل ، د دائرې په شان يا د کُرې په شان شکل۔

**گردۍ** :- (گَ + رْ + دَ + ی) (اس ، مو) د څرمنې ياد لرگي وړوکې شان حلقه چې د دوک سر کښې لگي۔چرمکۍ ، څرخلکے ، ټکی۔

**گردے** :- (گ + رْ + دَے) (صف ،مذ ، مو- ی) (۱) غونډ ، مدور (۲) چيت ، مندرے سړے (۳) د پټون هډوکے۔

**گرديز** :- (گَ + رْ + دې + ز) (اس ، مع) په افغانستان کښې د يوې علاقې نوم۔

**گرړول** :- (گ + رْ + ړَ + ؤ + لْ) (مص) (۱) رغړول ، گرگاړے کول ، (۲) د کوم څيز نه د "گرړ گرړ" په شان اواز پېدا کول۔

**گرړوونکے** :- (گ + رْ + ړَ + وُو + نْ + کَے) (اس ، فا ، ج ـــ کي) (۱) رغړوونکے ، گرگاړے کوونکے ، (۲) د کوم څيز نه په حرکت سره د گرړ گرړ اواز ايستونکے۔

**گرړه** :- (گ + رْ + ړ) (اس ، مو) يو قسم سبزي ده چې پخولے شي۔

**گرړئين** :- (گ + رْ + ړَ + يَ + ن) (اس ، مو) د وړو يوه لوبه ، چې په کاڼي او سورلۍ کولے شي۔گرناڼۍ۔

**گرړئين** :- (گَ + رْ + ړَ + ن + ي +ن) (اس مو) چکر ، د ځانه تاوېدنه ، پېر خوړنه۔چورلک۔

**ـــــ وهل / خوړل** :- د ځانه تاوېدل ، چورلېدل ، چورلکونه خوړل۔

**گرړے** :- (گ + رْ + ړَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) (۱) يو قسم مرغۍ ده چې اکثر د سيندونو په غاړه ليدے شي۔کريړے (۲) چيچکے۔

**گرړے** :- (گ + رْ + ړے) (اس ، مذ) ورو ورو چورلېدونکے ، لکه ورو ورو گرځېدونکې جرندې ته "گرړے" وائي۔

**گرړېدل** :- (گَ + رْ + ړَے + د + لْ) (مص) (۱) رغړېدل ، گرگاړے کېدل (۲) ورو ورو تاوېدل ، چورلېدل ،

نهٔ نرمېږي په شپېو د زما اوښکو
که ئې تل لکه اسمان په سر گرړېږم (حسېن)

( 2 ) گرړېدل ، گرړ گرړ کول ، د گرړ گرړ په شان اواز کول۔

**يادگيرنه : دې لاندېنيو ټکيو کښې د (ز) پر ځاے (ځ) راځي . خو دلته ئې اوس ترتيب بدلول مسائل پيدا کوي، ځکه دا هم هغسې د (ز) يعني د گرځ پر ځاے گرز په پټۍ کښې پرېښودل شوي .**

**گرز / گرځ** :- (گ + رْ + ز) (حمص) د گرځېدل حاصل مصدر ، گرځېدنه۔

**گرز (ځ)** :- (گُ + رْ / رُ + رْ) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د اوسپنې غټ سر واله اله چې پهلوانانو ئې په جنگ کښې استعمالوي۔

**گرز/غ** :- (گُ + رْ + ز) (انگ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) گروس ، دولس ، درجنه ، دولس درزنه۔

**گرزاند** :- (گ + رْ + زا + ن + د) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) گرځېدونکے ، په خپلو پښو تلونکے (۲) چورلېدونکے (۳) گرځوونکے

**گرزانده** :- (گ + رْ + زا + ن + دَ) (اس ، فا ، مو ، ج ـــ دې) (۱) گرځېدونکے ، په خپلو پښو تلونکے ، گرځنده ، (۲) هغه ماده ځناور چې نر سره د يو ځاے کېدلو (جفتی) نه پس هم مال نۀ شي۔

**گرزانده**:- (گ + رْ + زا + ن + دَ) (اس ، فا) گرځېدونکے ، چورلېدونکے ،

د عزت ترخو ته ځان نيولے نۀ شي

په خوږو پسې د مچ غوندې گرځانده (عبدالقادر)

**گرزاندے** :- (گ + رْ + زا + ن + دَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ي) گرځېدونکے ، سېلانے۔

**گرزن** :- (گَ + رْ + ز + نْ) (صف، مذ، مو ـــ ه) (۱) تاوېدونکے ، تاؤ خوړوونکے۔لکه : گرځن سړک ، گرځنه لار (۲) اړوونکے۔

**خوا**ـــ :- (خ + وا ـــ) ناخوشگواره ، ناخوښه۔

**گرزن** :-(گ + رْ + ز + نْ) (صف، مذ،مو ـــ ه) گرځنده ، ډېر گرځېدونکے۔

**گرزند** :- (گ + رْ + ز + نْ + د) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) گرځېدونکے په خپلو پښو تلونکے، متل : ناست زمري نه گرځند گيدړ ښۀ وي (۲) چورلېدونکے، تاوېدونکے (۳) گرځوونکے ، گرځاند۔

ـــ **ستورے** :- (ـــ س + تو + رَے) هغه ستورے چې گرځي ، متحرک ستورے ، سيّاره۔

**گرزندے** :- (گَ + رْ + ز + نْ + دَے) (اس، مذ ، ج ـــ دې) (۱) تاوېدونکې لار ، غلام گردش (۲) گرداؤ ، گرداب ، غولۍ۔

**گرزنے** :- (گ + رْ + ز + نَے) (اس ، مذ ، ج ـــ نې) (۱) غولۍ ، گرداب ، څرخاو (۲) تاوېدونکې لار ، غلام گردش۔

**گرزول** :- (گَ / گ + رْ + زَ + ؤ + لْ) (مص) (۱) په پښو يو ځاے نه بل ځاے ته بوتلل يا ځان سره وړل۔ (۲) تاوَول ، چورلول (۳) په حرکت کښې راوستل ، (مشين وغېره) (۴) (را ، ور ، درسره) پستنه کول ، ورتاوَول، ورچورلول (۵) مقررول ، ټاکل (۲) مجازاً : ژوندے ساتل ، ژوندے لرل ، ژوند/ جوند ورکول۔

**په سر** ـــ :- (پ + سَ + رْ ـــ) ډېر قدر عزت کول۔

**سر** ـــ (په چا) :- ډېر تنگول ، پرېشانه کول ، په ډېرو خبرو تنگول ډېرې زياتې خبرې کول۔

**سلام**ـــ :- (سَ + لا + م ـــ) دنمانځه په اخر کښې السلام عليکم و رحمة الله سره مخ ښي او گڅ طرف تاوول۔

**مخ** ـــ :- (م + خْ ـــ) (۱) مخ اړول ، توجه نۀ ورکول ، بې رخي کول (۲) ناخوښي ښرگندول۔

**گرزون** :- (گ + رْ + زُو + ن) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) گرځېدنه ، تاوېدنه ، تاوند ، گرځند۔

**گرزون** :- (گَ + رْ + زو + ن) (اس، مذ) قے ، التيې ، باقۍ۔

ـــ کول :- قے کول ، باقۍ کول ، التيې کول۔

**گرزونه** :- (گَ + رْ + زَ + و + نَ) (حمص) (۱) چورلونه ، تاوَونه (۲) گردان ، (د سبق) کاړه۔

**گرزېدل** :- (گ / گَ + رْ + زې + د +لْ) (مص) (۱) د يو ځاے نه بل ځاے ته تلل ۔په خپلو پښو يو ځاے نه بل ځاے ته تلل (ار : چلنا ، پهرنا) (۲) سېل کول ، سفر کول (۳) چورلېدل ، تاوېدل (۴) (ور ، در، را) ور ، را ، ستنېدل ، واپس کېدل ، بېرته تلل (۵) منلے کېدل لائق يا اهل گڼلے کېدل

۔لکه : د انعام وړ گرځېدل (۲) لټول ، لټول کول ، تلاش۔لکه: دې څيز پسې ډېر گرځېدم خو بيا مې نۀ موند۔(۷) لکه : ممکن گرځېدل ، کېدل

**پسې** ـــ :- (پ + سې ـــ) لټول ، تلاش کول۔

**په خيال کښې** ـــ :- په خيال کښې راتلل ، رايادېدل ، په خيال کښې تېرېدل۔

**خوشې**ـــ :- (خو / خُ + شې ـــ) اواره گردي کول ، بېکاره "بودل"

**سر** ـــ :- (سَ + رْ ـــ) (۱) سرگردانه کېدل ، چکرراتلل ، (په سر) (۲) په خبرو تنگېدل ، په ډېرو خبرو پرېشانه کېدل۔

**سورے / سوري** ـــ :- د نمر / نور د نيمې نه اوړېدل۔

**نمر/ نور/ لمر** ـــ :- (ن + مَ + رْ / ن + وَ + رْ / لِ + مَ + رْ ـــ) د نمر/ نور د اسمان نيمې نه اوړېدل۔

**نمونځ**ـــ :- (ن + مو + ن + (د) ز ـــ) نمونځ دوباره کول۔

**گرزېدنه** :- (گَ / گ + رْ + زې + د + نَ) (و ـــ گرځېدۀ)

**گرزېدۀ** :- (گَ / گ + رْ + زې + د) (حمص) (۱) يو ځاے نه بل ځاے ته (په پښو) تگ (۲) سېل کونه ، سياحت (۳) چورلېدۀ ، تاوېدۀ۔

**گرږ** :- (گَ + رْ + گُ / ژ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) خراش ، خوږ ، نرے زخم ، د نوکارې زخم۔

**گرږل** :- (گ + رْ + گ / ژ + لْ) (مص) (۱) خراش پيدا کول ، خراشل ، په نوکونو يا په کوم تېرۀ څيز سره نرې زخمونه پيدا کول۔(۲) تراشل

ـــ **شوے** ( **ځاے** ) :- تراشلے شوے ، خراشونو واله (ځاے وغېره) نوکارې شوے۔

ـــ **کېدل** :- خراشلے کېدل ، تراشلے کېدل۔په نوکارو وغېره زخمي کول۔

**گرږلے** :- (گ + رْ + گ / ژ + لے) (اس، مف ، ج ـــ لي) خراشلے ، په نوکونو يا په کوم داسې تېرۀ څيز زخمي کړے ، تراشلے۔

**گرږنه** :- (گ + رْ + گ / ژ + نَ) خراشنه ، تراشنه۔په نوکونو وغېره زخمي کونه۔

**گرږۀ** :- (گ + رْ + گ/ ژ) (و ـــ گرږنه)۔

**گرږے** :- (گ+ رْ + گے / ژے) (و ـــ گرږ)۔

**گرږيېل** :- (گ + رْ + گے / ژے + ئ + لْ) (و ـــ گرږل)۔

**گرست** :- (گ + رَ + سْ + ت) د ښېل (ښېلچې) په ذريعه زمکه وغېره نرمول يا اړول۔

**گرستے** :- (گ + رَ + سْ + تَے) (اس، مذ ، ج ـــ تې) ښېل ، يا يُوم وغېره چې زمکه پرې اړولے شي۔

**گرسره** :- (گ + رْ + سَ + رَ) (حرف) (۱) بېخي ، بالکل ، قطعاً۔دغه شان خو اوس گرسره نايابه شول۔(۲) ټول ، همه۔

**گرسنه** :- (گُ + رْ + س + نَ) (ف ، صف) اوږے ، لوږې اخستے۔

**گرفت** :- (گ + ر + فْ + ت) (ف ، مذ) (۱) نيونه ، قبضه (۲) اعتراض ، نکته چيني (۳) باز پُرس ، جواب طلبي ، محاسبه۔

ـــ **کښې راتلل** :- په قابو کښې راتلل ، قبضه کښې راتلل۔

ـــ **کول** :- (۱) محاسبه کول جواب غوښتل (۲) اعتراض کول ، نکته چيني کول۔

**گرفتار** (ف) :-(گ + ر +فْ + تا + ر / رَ) (اس، مف ، ج ـــ ان) (۱) نيولے شوے ، قبضه کښې راغلے ، (۲) نښتے (۳) قېدي ، (۴) مبتلا، مئين ، عاشق۔

ـــ **کول** :- (۱) نيول ، بندي کول ، څوک مجرم (د پوليس) په قبضه کښې **راوستل**۔(۲) نښلول ، مبتلا کول ، اخته کول۔

ـــ کېدل :- (۱) نيولے کېدل۔د پوليس په قبضه کښې راتلل (۲) نښتل ، مبتلا کېدل ، اخته کېدل۔

**گرفتارول** :- (گ + ر + فْ+ تا + رَ + ؤ + لْ) (و ـــ گرفتاره کول)۔

**گرفتاري** :- (گ + رِ +فْ + تا + رِي) (اس، مو) (۱) نيولې کېدنه ، (د پوليس)

په قبضه کښې راوسته ـ په قېد کېدنه (۲) ننبته ، ګېرېدنه ، مبتلا کېدنه.

**وارنټ ـــــ** :- (وا+رَ+نْ+ټ ـــــ) د ګرفتارولو حکم د عدالت د طرفه.

**ګرفتارۍ** :- (ګ + رِ + فْ + تا + رَ + ي) (۱) د ګرفتاري جمع ده (۲) د ''ګرفتاري'' بدل شکل چې مغیره تورو سره راځي.

**د ـــــ وارنټ** :- (دَ ـــــ وا+ رَ + ن + ټ) (انګ پ تر ، اس ، مذ ، ج ـ ونه) د عدالت د طرفه د کوم ملزم د نیولو حکم نامه.

**ګرفتارېدل** :- (ګ + رِ + فْ + تا + رې + د + لْ) (مص) (۱) نیولے کېدل (پولیس) په قېد کښې راتلل ، بندي کېدل (۲) ننبتل ، اخته کېدل مبتلا کېدل.

**ګرګنډه** :- (ګَ + رْ + ګَ + نْ + ډَ) (وـــــ ګرګنډه)

**ګرګے** :- (ګ + رَ + ګے) (اس ، صف) د ګُر یا غُر اواز ، د کوم څیز په زور سره د شلولو اواز.

**ګرګ** :- (ګَ + رْ + ګ) (اس ، مذ) (۱) یو قسم بوټے چې په چمنونو کښې پیدا کېږي ـ واړهٔ واړهٔ زیړ ګلونه کوي ـ که څاروے ئې چېرته وخوري نو د ګرګ ''په مرض'' اخته شي ـ (۲) یو مرض چې د ګرګ بوټي په خوړلو د څارو په ځیګر کښې غونډ غونډ چینجي پیدا شي ـ (۳) کنایه : په څهٔ څیز باندې پرله پسې عادت کېدنه.

**ګرګ** :- (ګَ + رْ + ګ) (اس ، مذ) خاربښت ، د خارش مرض.

**ـــــ نیول** :- خاربښت لګېدل ، د خاربښت مرض لګېدل.

**ګرګ** :- (ګُ + رْ + ګ) (ف ، اس ، مذ ، ج ـ ان) (۱) شرمخ (۲) تجربه کار.

**ـــــ باران دیده** :- (ـــــ با + را + ن + دي + دَ) (ف تر ، اس ، صف) هغه شرمخ چې باران و هلے وي ـ مجازاً تجربه کار ازموده ، خرانټ سړے.

**ګرګابۍ** :- (ګُ + رْ + ګا + بَ + ي) (اس ، مو) یو قسم انګرېزي پېزار چې تسمې نهٔ لري.

**ګرګاډے** :- (ګَ + رْ + ګا + ډَ ے)

**ګرګاډۍ** :- (ګَ + رْ + ګا + ډَي) پایه ، د پایې په شان غونډ رغړېدونکے څیز.

**ـــــ کول** :- رغړول.

**ګرګټ** :- (ګ + رْ ګ + ټْ) (اس ، مذ) د اوبښ د وړاندینۍ پښې یو هډوکے.

**ګرګټه** :- (ګَ + رْ + ګ + ټَ) (اس ، مو ، ج ـــــ ټې) ئوډۍ ښځه.

**ګرګچۍ** :- (ګَ + رْ + ګَ + چَ + ي) (اس مو) د انګورو وغیره اوچ لرګے.

**ګرګرے** :- (ګَ + رْ + ګَ + رَ ے) (اس ، مذ ، ج ـــ ري) وړه مېچن.

**ګرګ زړے** :- (ګَ + رْ + ګ + ز + رَ ے) (اس ، مذ ، ج ـــــ ړي) د جوارو وړې توکه ، غوډلے ـ کنډوسکے.

**ګرګس** :- (ګَ + رْ + ګ + سْ) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ګنجے ، یو مردار خوره مرغۍ چې د ټپوس نه غټه وي.

**ګرګس** :- (ګَ + رْ + ګَ + سْ) (اس ، مذ) د سینې صندوق ، ګوګل.

**ګرګل** :- (ګَ + رَ + ګَ + لْ) (اس ، مذ) خاربښ ، خاربښت.

**ګرګله** :- (ګَ + رْ + ګ / ګُ + ل) (اس ، مو ، ج ـــ لي) د پېریانو ډولۍ ، ګرد باد.

**ګرګنډه** :- (ګَ + رْ + ګَ + نْ + ډَ) (اس ، مو ، ج ـــ ډې) د لرګي ښته ګرګه.

**ګرګنه** :- (ګ + رْ + ګ + نْ + رَ + ن) (اس ، مو) ګرګین ځیګر ، یا هغه ځناور چې د ګرګ په مرض اخته وي ـ (وـــ ګرګ)

**ګرګو** :- (ګَ + رْ + ګُو) (اس ، مو) (۱) هنګامه ، شور شغرب ، (۲) د کډو یو مرض چې اکثر ترې مري (فـــ ساري).

**ګرګوښه** :- (ګَ + رْ + ګو + خَ / شَ) (اس ، مو ، ج ـــ ښې) ګورګخ ، ګورګش ، مشهور ځناور ، ګورګنۍ ، نغسه.

**ګرګه** :- (ګ + رْ + ګَ) (اس ، مو ، ج ـــ ګې) ښته ، د ونې د تنې غټ او اوږد لرګے ، (۲) مجازاً : غټ پټ او لوړ دنګ سړے (۲) زورور او ډېر اثر رسوخ واله سړے ـ (۴) د زین لرګي ته هم وائي.

**ګرګۍ** :- (ګَ + رْ + ګَ + ي) (اس ، مو) (۱) یو قسم خړ رنګے بوټے دے چې پاڼې نهٔ لري ـ څانګې ئې مهینې او نازکې وي ـ (۲) د ګرګه تصغیر ، وړه ګرګه.

**ګرګے** :- (ګ + رْ + ګے) (اس ، مذ ، ج ـــ ګي) (۱) د یوې لوبې نوم (۲) سست او لټ غوے.

**ګرګے** :- (ګ + رْ + ګے) (صف ، مذ ، ج ـــ ګي) ګنجے ، پک ، چې په سر ئې وېښته نهٔ وي.

**ګرګے** :- (ګ + رْ + ګے) (اس ، مذ ، ج ـ ګي) استخوان بندي ، د ماتو هډوکو ترنه ، چجه کونه.

**ګرګي** :- (ګُ + رْ + ګي) (پ ، تر ، اس ، مو) د ګرګ کار کونه ، شرمختوب ، د شرمخ کار ، شلونه ، نقصان رسونه.

**ګرګین** :- (ګَ + رْ ګي + نِ) (صف ، مذ ، موـــ ه) (۱) خاربښت واله سړے ، د خاربښت په مرض اخته بني ادم (۲) حېوان.

**ګرل** :- (ګَ + رْ + ل) (انګ ، اس ، مو ، ج ـــ ګرلز) جینۍ ، جلکۍ ، جن ، جل.

**ګرلات** :- (ګَ + رْ + لا + ت) (اس ، مذ) ټیکرے ، ټیکر ، سفال.

**ګرلاځه** :- (ګَ + رْ + لا + (ت) سَ) (اس ، مو ، ج ـ ځې) ترګڼ ، کاه کش.

**ګرلنډ** :- (ګ + رْ + لَ + نْ + ډ) (صف ، مذ ، موـــ ه) غټ او ځورب سړے ، ګرګه

**ګرلنډه** :- (ګ + رْ + لَ + نْ + ډَ) (اس ، مو ، ج ـــ ډې) چورلکه ، چورلېدنه

**ګرلے** :- (ګ + رْ + لے) (اس ، جم) د سپر (ډال) کړۍ.

**ګرم** :- (ګ + رَ + مْ) (صف ، مذ ، موـــ ه) (۱) ملامته ، مجرم ، ګناه ګار.

متل : نهٔ پوئې نو نهٔ ګرم (۲) مغلوب ، لرشوے.

**ـــــ بولل** :- ملامته ګڼل ، مجرم بولل ، مجرم ګڼل ، ګناه ګار ګڼل.

رحمٰن خود په خپله ګرم یم چې مئین شوم
ولې نـــور عـــالم مې بولي ګرم په څـهٔ (رحمان بابا)

**ـــــ تیا** :- (ـــــ ت + یا)

**ـــــ توب** :- (ـــــ تو + ب) ګرم کېدنه ، ملامتیا.

**ـــــ کول** :- مجرم ګرځول ، ملامته کول.

**ـــــ کېدل** :- ملامته کېدل ، مجرم کېدل ، جرم ثابتېدل.

**ـــــ ګڼل** :- ملامته ګڼل ، مجرم ګڼل.

**ـــــ والے** :- (ـــــ وا + لَے) ګرمتیا ، ملامتیا ، قصور واري.

**ګرم** :- (ګَ + ر / رْ + مْ) (ف ، صف ، مذ ، موـــ ه) (۱) تود ، د سوړ یا یخ ضد ، حرارت واله ـ (۲) زور شور سره ، په عروج ، مجلس بنهٔ ګرم وو (۳) عاشق ، مئین ، فلانے په فلانۍ ډېر ګرم دے ـ (۴) په غصه کښې ، په قهر.

**ـــــ بحث** :- (ـــــ بَ + حْ + ثْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) تود بحث ، داسې بحث چې په کښې دواړه غاړې په ډېر جوش خروش کښې وي.

**ـــــ خبر** :- (ـــــ خَ + بَ + رْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) دلچسپ خبر ، تازه خبر ، افواه ، انګازه.

**ـــــ سېر** :- (ـــــ سې + ر) (ف تر ، صف ، مذ ، موـــ ه) توده سیمه توده خوا.

**ـــــ مزاج** :- (ـــــ مِ + زا + ج) (ف تر ، صف ، مذ ، موـــ ه) هغه چې په طبیعت کښې ئې ګرمي وي ـ غصه ناک ، زر غصه کېدونکے ، تېز طبیعته.

**سر ـــــ** :- (سَ + رْ ـــــ) (ف تر ، صف ، مذ ، موـــ ه) مستعد ، محنت سره

کار کوونکے۔

**گرما ـــ** :- (گَ + رْ + ما ـــ) (ف تر ، صف) (۱) تود ، بالکل تازه پوخ شوے څیز چې لاد اور د تاؤ اثر ترې ښکاره وي۔(۲) تود، ډېر زور شور سره۔لکه: گرما گرم بحث۔

**گرم** :- (گُ + رُ + مْ) (اس ظر) لکه: کا نيې گرم (د يو مشهور کلي نوم) ځاے ، کلے ، ابادي۔

**گرماله** :- (گَ + رْ + ما لَه) (اس ،مو ، ج ـــ گرمالې) گُل ماله ، د گلکارانو يوه اله ، چې لېو پرې کوي۔

**گرمانه** :- (گ + رْ + ما + نَ) (اس ، مو ، ج ــ نې) جرمانه ، گرَم کېدلو نه پس تاوان۔

**گرمټ** :- (گ + رْ + م + ټْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) نېزه (۲) د نېزې وغېره سوکه / څوکه ، (۳) دُرمټ ، دورمټ ، هغه اله چې لاستے ئې د لرگي وي خو په بل سر کښې ئې د اوسپنې غټ وزن لگېدلے وي۔چې د فرض وغېره خاوره يا باجري پرې ټکوي چې خاوره يا باجري کښېني او کلکه هواره شي

**گرمټ** :- (گَ + رْ + م + ټْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د ترکاڼانو مشهوره اله چې په لرگي کښې پرې سوري کوي۔

**گرمکه** :- (گَ + رْ + م / مَ + کَ) (اس ، مو، ج ـــ کې) گرمي دانه ، هغه ورې ورې دانې چې په اوړي کښې په بدن راوخېژي۔

**گرمکي** :- (گَ + رْ + مَ + کي) (اس، مو ، ج) (۱) د گرمکه جمع ده ۔(۲) د ''گرمکه'' بدل شکل دے۔چې د مغيره تورو سره راځي۔

ـــ **ختل** (په چا) :- په بدن باندې گرمې دانې راپيدا کېدل ، د گرمۍ په موسم کښې په بدن باندې نرۍ نرۍ دانې پيدا کېدل۔

**گرمل** :- (اس ، مذ ، ج۔ونه) گونجه ، گرونجه ، چونې ، چين۔

**گرمل** :- (گُ / گو+رْ + م + لْ) (صف) کچه گنډ کول ، عارضي طور سره غټ غټ ټکونو سره گنډل۔

**گرملے** :- (گُ / گو+ رْ + م + لَے) (صف) غټ ټکونو سره عارضي طور سره گنډلے شوے ، سرسري گنډلے۔

**گرمنه** :- (گُ/ گُو + رْ + مَ + نَ) (حمص) غټ غټ ټکونو سره گنډنه ، سرسري گنډنه۔

**گرموز** :- (گُ + رْ + مو + ز) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) تريو تندي واله سړے ، بوټ تندي واله۔(۲) غصه ناک ، په پوزه مچ نۀ پرېښېدونکے۔

**گرمول** :- (گ + رَ + مَ + ؤ + لْ) (مص) گرم کول ، ملامته کول ، قصور وار گرځول۔

**گرمول** :- (گَ + رْ + مَ + ؤ + لْ) (مص) (۱) تودول ، گرمي رسولو سره تودول ، په اور تودول ، گرمي ور رسول ، حرارت ور رسول (۲) مئينول ، عاشق کول (۳) د کوم کار دپاره اماده کول، تودَول (۴) په جنگ کول ، جنگ جگړې ته تيارول (۵) رونق زياتول (بازار) ، خريداران زياتول۔

**گرموونکے** :- (گ + رَ + مَ + وُو + ن + کَے) (اس ، فا ، ج ـــ کي) گرم گرځوونکے ، ملامته کوونکے ، قصور وار گرځوونکے۔

**گرموونکے** :-(گَ+رْ+ رَ+وُو + ن + کَے) (اس ، فـا ، ج ــ کـي) (۱) تودوونکے ، گرمي ور رسوونکے(۲) کوم کار دپاره تياروونکے رغبت يا شوق پيدا کوونکے (۳) عاشق کوونکے ، مئينه وونکے۔

**گرمونه** :- (گَ + رَ + مَ + ؤ + نَ) (حمص) گرم کونه ، ملامته کونه قصور وار گرځونه۔

**گرمونه** :- (گَ + رْ + مَ + ؤ + نَ) (حمص) (۱) د گرمولو کار ، تودونه (۲) اماده کونه ، رغبت او شوق ور ولاړونه (۳) مېنونه ، عاشق کونه۔

**گرمه** :- (گَ + رْ + مَ) (اس ،مو، ج ــ مې) (۱) هغه مېوه يا سبزي چې زر پخه شي۔لکه کچالو ، خربوزه (۲) د خربوزې يو خاص قسم دے چې زر تيار او پوخ شي۔

**گرمي** :- (گَ + رْ + مِيْ) (اس ، مو) تودوخه ، د گرم کېدلو حالت ، د هوا گرمي۔

ـــ **سړدي / سړزي** :- (۱) گرم او يخ حالت ، مختلف قسم حالات ، غم ښادي ، ارام او مصيبت (۲) د عشق او مينې څرگندونه ، رقابت (په مينه کښې ) (۳) جوش و خروش۔

ـــ **کول** :- (۱) د اس ، اسپې يا د بل کوم ځناور د کار په وجه ډېره گرمي محسوسول يا ډېر زيات خولې کېدل (۲) د تادۍ نه کار اخېستل ، تُندي کول ، تېزي ښودل۔

**گرما ـــ** :- (گ + رْ + ما ـــ) (اس ، مو) جوش و خروش ، شوخي ، تېزي۔

**مېدان ـــ** :- (مے + دا + ن ـــ) مېدان گرمونه ، ډوزې ډازې ويشتنه ، تشې خبرې کونه ، تېزې يا لوړې خبرې چې نور خلک گرم کړي (او په خپل د عمل جوگه نۀوي) ۔

**گرمې** :- (گَ + رْ + مې) (صف ،مو ، ج) (۱) د ''گرمه'' جمع (۲) د ''گرمه'' مجروري وغېره شکل چې د مغيره تورو سره راځي۔

ـــ **جامې** :- (ـــ جا + مې) (اس، مو ، ج) هغه جامې چې د يخنۍ په موسم (جمې ، ژمې) کښې اغوستے شي۔

ـــ **خبرې** :- (ـــ خَ + ب + رې) تودې خبرې ، د غصې او قهر نه ډکې خبرې۔

**گرمۍ** :- (گ + رْ + مۍ) (۱) د ''گرمي'' جمع ده ۔(۲) د ''گرمي'' بدل شکل دے۔چې د مغيره تورو سره راځي۔

ـــ **وهل**:- د نمر او گرمۍ په وجه بې سوده کېدل (انگ: سن سټروک)۔

د ـــ **موسم** :- اوړے ، ډوبے۔

**گرمېدل** :- (گ + رْ + ے + د + لْ) (مص) ملامته کېدل ، قصور وار ثابتېدل۔

**گرمېدل** :- (گَ + رْ + مې + د + لْ) (مص) (۱) گرم کېدل ، تودېدل ، حرارت ور رسېدل (۲) جنگ جگړې ته تيارېدل ، جنگ ته جوړېدل ، جگړه يا جنگ کول (۳) مئينېدل ، عاشق کېدل (۴) رونق زياتېدل ( د بازار ) خريد و فروخت پېرل پلورل زياتېدل (۵) شوق يا هسه زياتېدل (۶) د جفتې طلب کول ، (د ځناور)۔

**گرمېدنه** :- (گ + رْ + مې + د + نَ) (حمص) ملامته کېدل ، ملامتيا قصور واري ، قصور واره ثابتېدل۔

**گرمېدنه** :- (گَ + رْ + مې + د + نَ) (حمص) (۱) تودېدنه ، گرمي ور رسېدنه (۲) جنگ جگړې ته تيارېدنه (۳) په بحث کښې تودېدنه (۴) مئينېدنه ، عاشق کېدنه۔

**گرمېدونکے** :- (گَ + رْ + مې+ دُو + نْ + کَے) (اس ، فا ، ج ـــ کي) ملامته کېدونکے ، قصور واره ثابتېدونکے۔

**گرمېدونکے** :- (گَ + رْ + مې + دُو + نْ + کَے) (اس ، فا ، ج ــ کي) (۱) تودېدونکے (۲) جنگ جگړه کوونکے يا جنگ جگړې ته اماده کېدونکے (۳) مئينېدونکے ، عاشق کېدونکے۔

**گرمېدۀ** :- (گَ + رْ + مې + د) (و ـــ گرمېدنه)

**گرنانۍ** :- (گَ + رْ + نا + نۍ + ی) (اس مو) د ماشومانو يوه لوبه ، چې په ورو ورو ټيکرو کولے شي۔

**گرنجهار** :- (گ + رَ + نْ + جَ + هاَ + ر) (اس ، صوت) د فلزې (دهات نه جوړ) څيزونو د جنگېدلو اواز ، کړنگهار۔

**گرندوکے** :- (گ + رَ+ نْ + دُو + کَے) (اس ، مذ ، ج ــ کي) د اس خرخره ،

**گرندے** :- (گ +رَ + نْ + دَ ے) (اس ، مذ ، ج ــ دي) د جلدساز کرېه چاړهٔ.

**گرنده** :- (گَ +ر + نْ + دَ) (اس،مو،ج ــ دې) يو غرئيزه ونه ، گرگره.

**گرنبړ** :- (گ + رْ + نې + ړ) (انگ ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) په لاس د غورځولو بم.

**گرو** :- (گ + رُو) (اس ، مو) لټکه ، شنے.

**گرو** :- (گ + رو) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) شرط ، تړ.

**گرو** :- (گ / گ + رو) (ف، اس ، مذ) گاڼه ، رهن.

**ــــ اخيستل** :- په گاڼه کښې اخيستل ، ځان سره په رهن کښې کښېښودل.

**ــــ کول** :- گاڼه کول ، رهن کول.

**په ــــ ايښودل** :- گاڼه کښېښودل ، گاڼه کول ، په رهن کښې کښېښودل.

**گروپ** :- (گ + رُ + پْ) (انگ ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) ټولے ، ډله.

**گروت** :- (گ + رو + تْ) (اس، مذ ، ج ــ ونه) (۱) په خپله کښې لاسونه ورکول (۲) قدره ، غېږ ، دسته.

**گروټے** :- (گ + رو + ټے) (اس ، مذ ، ج ــ تي) چيره ډوډۍ.

**گروڅکے** :- (گ + رو (ت) س + کَے) (اس ، مذ ، ج ــ کي) زرشک مشهور دارو.

**گروړبے** :- (گْ + رو + ړ + بَے) (اس ، مذ ، ج ــ بي) خراشکے ، د سينې بلغم

**گروزبے** :- (گ + رُو + ز + بے) (اس، مذ) د سينې درد ، بلغم.

**گروزے** :- (گ + رو + زَے) (و ــ گربوزے)

**گروس** :- (گ +رُ + سْ) (انگ ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) دولس درجنه، يو ځاے ترلے شوي دولس درزنه ځيزونه.

**گروس** :- (گ + رُو + سْ) (اس ، مذ) يو قسم بوټے دے چې مېوه ئې د توتانو په شان وي.

**گروس** :- (گ + رو + س) (اس ، مع) يو قبيله ده چې په سوات کښې اباده ده -وائي چې دا پخواني کوهستانيان دي-يعني پښتانهٔ نهٔ دي.

**گروگوړ** :- (گ + رو+ گُو + ر) (و ــ گړ (و) گوړ)

**گروَل** :- (گَ + رَ + وَ + لْ) (مص) (۱) په بدن کښې خارښت کوونکي ځاے په نوکونو مړل ، چې خارښت لرې شي (ار : کجهلانا ، ف: خارين) (۲) په چل چل کښې د چا د زړهٔ حال معلومول (۳) نرے نرے توړل ، سولول (ار : کريدنا ، ف: حک کردن) په نوکونو مښل.

**جېب ــــ** :- (جے+ب ــ) د خپل جېب نه مال (پېسې ټکې) را ايستل.

**څټو ــــ** :- (۱) سوچ کول ، فکر کول-متل : ماما څټ وگروي-نو د خورَيي ترې طمع پېدا شي-(۲) شرمنده کېدنه ، کچه کېدنه.

**د چانه / څخه څهٔ ــــ** :- د چا نه څهٔ د مال (پېسو ټکو وغېره) وصولي کول ، د چا نه څهٔ بودول يا حاصلول.

**سر ــــ** :- (سَ + رَ ــ) مجازاً ډېر لږ شان (ضروري) کار کول-په محاوره کښې استعمالېږي-سر گرولو ته نهٔ اوزگارېدل.

**غوږ ــــ** :- (غ + وَ + گْ / ژْ ــ) اثر نهٔ کول ، خبره نهٔ اورېدل ، لکه: زما په خبرو هغه غوږ نهٔ گروي.

**گروم** :- (گ + رو + م) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) (۱) يو قسم غوټه چې د ونو په تنه کښې پېدا کېږي (۲) غم ، اندوه

چې دې زهٔ او رقيب سم گورو و مخ ته
گرومونو کړه وروسته زما اينه (حميد)

(۳) يو مرض چې د ډېر غم نه پېدا کېږي-(۴) ځينې خلک د دق مرض ته هم گروم وائي-

**ــــ جن** :- (ــ ج - نْ) (صف ، مذ ، مو ــ ه ، ج ــ نې) له غمه ډک ، غمجن ، غمگين ، په زړهٔ کښې پټ غم کوونکے.

**ــــ کول** :- غم کول ، زړهٔ خوړل ، فکر کول.

**گرومول** :- (گ + رو + م + وُ + لْ) (مص) غمجن کول ، غمگين کول، په اندوه کښې اچول.

**گروموونکے** :- (گ + رو + مَ + وُو + نْ + کَے) (اس ، فا ، ج ــ کي) غمگين کوونکے ، غمجن کوونکے.

**گرومېدل** :- (گ + رو + مې + د + لْ) (مص) غمجن کېدل ، غمگين کېدل ، اندوه جن کېدل.

**گرومېدونکے** :- (گ + رو + مې + دُو+نْ + کَے) (اس ، فا ، ج ــ کي) غمجن کېدونکے ، غمگين کېدونکے.

**گرومېدهٔ** :- (گ + رو + مې + د) (حمص) غمگين کېدهٔ ، غمجن کېدهٔ

**گرووَل** :- (گْ+رو + وُ + لْ) (و ــ گرول)

**گرووَل** :- (گ + رَ + وَ + وُ + لْ) (مص) (و ــ گرو کول)

**گرووَنے** :- (گَ + رَ + وُو + نَے) (اس ، مذ) (۱) د نانوايانو يو قسم سيخ ، (۲) د تنور يا د تبخي د گرولو پلن سر واله سيخ.

**گروه** :- (گ + ر + وَ) (اس ، مو ، ج ــ وې) (۱) د مرۍ هډوکے ، چمغړک (۲) د قميص کالر.

**گروه** :- (گ +رو+ ه) (ف ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) ډله ، ټولے ، جماعت.

**ــــ بندي** :- (ــ بَ + نْ + دِي) (اس ، مو) ډله بندي ، ډلې جوړونه ، فرقه بندي

**گروه** :- (گ + رو + ه) (اس ، مو) رهن ، گرو.

**ــــ کول** :- (و ــ گرو کول.)

**گروهن** :- (گ + رو + هـ + نْ) (صف ، مذ ، مو ــ ه) (۱) مهربان ، مشفق (۲) راغب ، مائل (۳) وېرې اخستے ، په وېره.

**گروهنه** :- (گ +رو+ هـ + نَ) (حمص) (۱) مهرباني ، شفقت (۲) وېره، ډار.

**ــــ کول** :- (۱) مهرباني کول ، مينه ، شفقت کول (۲) وېره ، ډار کول.

**گروهنے** :- (گ + رو + هـ + نَے) (اس ، مذ ، ج ــ نِي) مهربان ، شفقت کوونکے.

**گروهول** :- (گ + رو+ هَ + لْ) (مص) (۱) معتقد کول ، عقيدتمند کول (۲) مائله کول ، راغب کول (۳) وېرول (د ظلم نه).

**گروهونه** :- (گ +رو + هَ+ وُ + نَ) (و ــ گروهنه).

**گروهوونکے** :- (گ + رو + هـَ + وُو + ن + کَے) (اس ، فا ، ج ــ کي) (۱) معتقد کوونکے (۲) راغب کوونکے ، مائله کوونکے.

**گروهېدل** :- (گ + رو + هې + د + لْ) (مص) (۱) معتقد کېدل ، اعتقاد لرل (۲) مائله کېدل ،راغب کېدل (۳) ډله کېدل ، په ډله کښې شاملېدل.

**گروهېدلے** :- (گ+ رو + هې + د + لَے) (اس ، مف ، ج ــ لي) (۱) معتقد شوے (۲) راغب شوے ، مائله شوے.

**گروهېدونه** :- (گ + رو + هې + د + نَ) (حمص) (۱) معتقد کېدنه ، عقيدت لرنه) (۲) مائله کېدنه.

**گروهېدهٔ** :- (گ +رو + هې + د) (و ــ گروهېدنه)

**گروے** :- (گ + رَ + وے) (۱) د گروه جمع ده (۲) د "گروه" مجروري وغېره شکل چې د مغيره تورو سره راځي.

**گروے** :- (گَ + ر + وے) (و ــ گروه)

**سر ــــ ته بښکته کول** :- (و ــ سر گرېوان ته ښکته کول.)

**گروے** :- (گَ + رْ + وَے) (اس، مذ ، ج ــ وِي) زگيروے ، د رنځور فرياد.

**گروي** :- (گ + رَ + وِي) د گرېوان تنۍ، بټن- (و ــ گرو)

**ــــ دار** :- (ــ دا + ر) گرو دار ، گرو کېښېښدونکے ، گاڼه وال.

**گروېدگي** :- (گ + رَ + وي + دَ + گي) (اس ، مو) فريفتگي ، رغبت لرنه ، مائل کېدنه.

**گروېدل** :- (گ + رَ + وي + د + لْ) (مص) و ــ گرو کېدل.

**گروېده** :- (گ + رَ + وِي + دَ) (ف صف) مائل ، راغب ، رغبت لرونکے ، فريفته.

**گروېږل** :- (گَ + رَ + وي + گ / ژ + لْ) (مص) تپوس کول ، پرسان کول ، پوښتنه کول ، تحقيق کول ، لټون کول.

**گروېږلے** :- (گ + رْ + وے + گ / ژ + لَے) (اس ، مف) تپوس کړے شوے ، پوښتېدل شوے ، تحقيق کړگے شوے.

**گروېږن** :- (گ + رْ + وے + گ / ژ + نْ) (اس ، مذ) هغه طريقه چې د حلال کړي گډ د کونې نه تر خاپو پورې پوست شلولے شي - چې مشک ترې جوړ کړې شي.

**ــــ کول** :- د حلال کړي گډ پوست په خاص طريقه شلول (و ــ گروېږن)

**گروېږنه** :- (گ + رْ + وے + گ / ژ + نَ) (حمص) تپوس کونه ، پوښتنه کونه ، پرسان ، تحقيق ، لټون. (اکثر "پوښتنه" سره يو ځاے راځي)

**گروېږونکے** :- (گ + رْ + وے + گُو / ژُو + نْ + کَے) (اس، فا ، ج ــ کي) (۱) تپوس کوونکے، پوښتنه کوونکے، پرسان کوونکے (۲) تحقيق کوونکے ، لټون کوونکے ، مفتش ، متجسس ، محقق.

**گروېږونے** :- (گَ + وْ + وې + گُو / ژُو + نَے) (و ــ گروېږونکے)

**گرويل** :- (گْ + رو + ئ + لْ) (مص) گړَوَل ، (ف : خاربدل)

**گروئيلے** :- (گ + رو + ئ + لَے) (اس ، مف، ج ــ لي) گړَوَلے، گرېدلے.

**گروينکه** :- (گ + رو + يَ + ن + کَ) (اس مو ، ج ــ کې) تنقيد.

**گروئېدل** :- (گ + رو + ئے + د + لْ) (و ــ گروهېدل)

**گره** :- (گَ + رَ) (اس ، مو، ج ــ رې) د گنو ټوټې چې د تخم دپاره يو ځاے په خاورو پټې کړې چې د کَر په موسم بيا راوويستے شي.

**گره** :- (گ + رَ) (اس، مو ، ج ــ ې) غوټه ، عقده.

**گرهار** :- (گَ + رَ + ها + ر) (اس ، صوت) د کړېږ د شلېدلو اواز ، کرر.

**گرهو** :- (گَ + رْ + هو) (اس ، مو) زړۀ ته دوک رسوونکې خبرې. داسې خبرې چې د بل زړۀ پرې مات شي.

**گري** :- (گَ + رِي) (لاحقه) د فارسي لاحقه ده. اسمونو سره لگي. او د جوړولو ، کولو معنې ورکوي. لکه : زرگري.

**گرېي** :- (گَ + رَ + يې) (و ــ گروَه)

**گرېي** :- (گ + رَ + يې) (د "گرے" تانيث.) ("گره" هم وئيلے شي)

**گرئ** :- (گ + رَ + ئ) (اس مو) د دروازې چوړ ، چوڼ ، چټے.

**گرے** :- (گ + رَے) (صف ، مذ ، ج ــ رِي) هغه سړے چې غاښونه ئې کاږۀ واږۀ بې ترتيبه او تېرۀ وي.

**گرے** :- (گ + رَے) (لاحقه ، ج ــــ رې) د پښتو لاحقه ده. د پېشې يا د کار معنې ورکوي. لکه : لوگرے.

**گريان** :- (گ + رْ + يا + ن) (ف ، صف، مذ، مو ــ ه) په ژړا ، په جړا ژړېدونکے ، جړېدونکے.

**گريانه** :- (گ / گي + رْ + يا + نَ) د گريان بدل شکل چې د ځينومغيره تورو سره راځي.

**گريب** :- (گ + ري + ب) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د اوښ کوهان.

**گرېبان** :- (گَ + رې + با + ن) (ف ، اس ، مذ ، ج- ونه) گرېوان د قميص غاړه

**ــــ چاک کول** :- (۱) گرېوان شلول ، گرېوان څيرې کول

چې بقا ئې په چمن کښې يوه ورځ وي
لاله څکه د قميص گرېبان چاک کا (خوشحال خان)

(۲) لېونے کېدل.

**گرېته** :- (گ + رې + ټَ) (اس ، مو) هغه حلوا چې د جنازې نه وروستو پخولے شي. د مړي حلوا ، (۲) مړي پسې خېرات.

**ــــ دې پخه شه** :- ښېره ده يعني ته مړ شې. مرگ دې راشه.

**ــــ دې اوخورم** :-

**ــــ مې اوخورې** :- مجازاً : ته مړ شې. يا زۀ دې مړ شم.

**گرېټې** :- (گ + رې + ټَ + ې) (اس ، مو) زباني خبرې ، معمولي خبرې چې گيلې غوندې وي. د شکايت خبرې ، د گيلو نه ډکې خبرې.

**گرېدل** :- (گ + رې + د + لْ) (مص) (۱) خارښت کول ، چې گرۀل غواړي (۲) حاصلېدل ، وصولېدل.

**غوړ نۀ ــــ** :- (غ + وَ + گْ / ژْ + ن ــــ) اثر نۀ کول ، لکه : زماپه خبرو هغه غوړ نۀ گروي.

**گرېډ** :- (گ + رې + ډ) (انگ ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) درجه ، مرتبه رتبه ، مرحله.

**گرېز** :- (گُ + رې + ز) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) د ماشوم ناقلارے او بخيلي.

**گرېز** :- (گُ + رې + ز) (ف ، صف) (۱) زغل ، منډه ، تېښته.

و مظلوم ته به ظالم زبون حقير شي
هغه ورځ چې نه گرېز نۀ افتفاء وي (حافظ)

(۲) (شاعري) په قصيده کښې د يو مضمون نه بل مضمون ته اوښتنه

**ــــ کول** :- (۱) تېښته کول ، تښتېدل ، منډه وهل (۲) ځان ژغورل ځان ساتل (۳) پرهېز کول.

**گرېزان** :- (گُ + رَے + زا + ن) (ف، اس ، فا) تښتېدونکے ، زغلېدونکے ، منډه وهونکے ، په تېښته.

**گرېزے** :- (گ + رَے + زَے) (اس ، مذ) د حکومت د طرفه ممنوعه مال (ف : قاچاق).

**گريزي** :- (گُ + رِي + زِي) (صف ، مذ) د حکومت د طرفه ممنوعه خلاف قانون. لکه : گريزي سوداگري.

**گريس** :- (گ + رِي + س) (انگ ، اس ، جم) (۱) هغه مصنوعي غوړ چې د مشينونو پرزو کښې اچولے شي. گريز. (۲) مجازاً حقارتاً : خراب غواړي (۳) يونان ، د يونان ملک.

**گريک** :- (گ + رِي + ک) (اس ، مذ) يونانے ، د يونان اوسېدونکے.

**گريگړے** :- (گ + رْ + گ + ړَے) (اس ، مذ) نرۍ نرۍ ړلۍ.

**گرين** :- (گ + رِي + ن) (اس ، مذ) سينه.

**گرين** :- (گ + رِي + ن) (اس ، مذ) هغه تار يا مزے چې برغد يا په درې لړه غښتلے شوے وي.

**گرينډۍ** :- (گ + رِي + ن + دَ + ۍ) (اس ، مو) د لښتو لرگو نه جوړه شوې کجاوه

**گرين لينډ** :- (گ + رِي + ن + لَے + ن + ډ) (اس ، مع) د يورپ په شمال مغرب کښې يوه لويه جزيره.

**گرين هاؤس** :- (گ + رِي + ن + ها + ؤ + س) (انگ ، تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) هغه ځاے چېرته چې مصنوعي طريقې سره واړۀ بوټي او گلونه وغېره پېدا کولے شي.

**گرېوان** :- (گ + رې + وا + ن) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) گرېبان ، د قميص هغه حصه چې د مرۍ نه چاپېره وي.

**ــــ پاره کول** :- (و ــ گرېوان څيرې کول.)

**ــــ ته لاس اچول** :- بې عزتي کول ، جگړه کول.

**ــــ څيرې** :- (ــــ (ت) سي + رې) (پ تر ، صف) هغه چې گرېوان ئې

شلېدلې وي.د لېونو په شکل ، لېونے.

**ــــ خیرې کول** :- (۱) ګړېوان شلول (۲) لېونے کېدل (۳) ډېر زیات غم څرګندول

**ــــ خیرې کېدل** :-ګړېوان شلېدل، کنایه : تور پورې کول ، تهمت لګېدل.

**ــــ شلول** :- (۱) لېونے کېدل (۲) د ګړېوان نه نیول ، سخته مطالبه کول.

**په ــــ کښې سر ښکته کول** :-

**په ــــ کښې سر ننباسل** :- په خپل عمل او کردار غور کول ، خپل ګل ځان ته وړاندې کول.

**په ــــ کښې کتل** :- په خپل حال غور کول ، د خپل عمل جائزه اخستل.

**مشت و ــــ کېدل** :- (مُ + شْ + تو ــــ) چا سره جګړه کول.

**ګړبوه** :- (ک + ړے / رې + وَ) (اس ، مو) د تنې سورے ، غُرباشه.

**ګریوه** :- (ک + رې + وَ) (اس ، مو ، ج ــــ وې) غونډۍ ، ډېه.

**ګریه** :- (کِ + کي + رْ + يَ) (ف، اس ، مو) ژړا ، جړا.

**ګرپیل** :- (ک + ړے + ئ + لْ) (مص) ګرؤل.

**ګرپینه** :- (ک+ ړے + ئ + نَ) (حمص) ګرَؤنه.

**ګړ** (۱) :- (ک+ ړْ) (اس ، صوت) د ګېډې اواز ، عموماً ''ګړګړ'' وئیلے شي.

**ــــ ګوړ** :- (ــــ ګو + ړْ) (۱) د وریځو پرله پسې اواز (۲) د اواز سره د وریځو راتلنه.(لکه : ګړ ګوړ راغے) (۳) شورشغربے ، ها ، ګوله.

**ــــ و بړ** :- (ــــ (ړو) بَ + ړْ) (پ، تر،اس ، مذ) ظاهري نمائش ، کروفر ، شان شوکت ، ټیس ټپاس.

**ګړ** (۲) :- (ک + ړْ) (اس ،مذ) (۱) تلفظ (۲) لفظ ، خبره.

**ــــ کول** :- (۱) تلفظ کول (۲) خبره کول.

**ګړ** :- (ک+ ړْ) (صف ، مذ ، مو ــــ ه) د ګډ په معنٰی استعمالېږي.

بې تدبیره ئې د غم په دریاب ډوب کړم
بې نیازي د ښکلیو شوه راپسې ګړه (حسېن)

**ګړ** :- (کَ + ړْ) (اس، مذ ، ج ــــ ونه) لفظ ، ټکے ، ګړت.

**ګړ** :- (کَ + ړْ) (اس، مذ ، ج ــــ ونه) قلعه ، قلا.

**ګړ** (۲) :- (کَ +ړْ) (لاحقه) دګلو د نومونو په اخر کښې راځي.او د کلي یا د ښهر معنې ورکوي.لکه : امان ګړ(هـ) خوشحال ګړ (هـ. ګړهـ)

**یاغي ــــ** :- (یا + غي ــــ) (پ تر ، اس ، صف) (۱) هغه علاقه چېرته چې د چا واک اختیار نۀ وي. یا چېرته چې د چا قانون نۀ چلېږي. (۲) ازاده علاقه ، باغي شوې علاقه.

**ګړ** (۳) :- (کَ + ړْ) (اس ، مذ) زر ورق چې د زنانه ؤ په ویښتو کښې لګولے شي.

**ګړا** :- (کَ+ ړا) د ګړ ګړ مسلسل اواز.

**ــــ ګوړ** :- (۱) (و ــــ ګړ ګوړ) (۲) په زوره زوره یا تېزې تېزې خبرې.

**ــــ ګوړ کول** :- خبرې کول ، تېزې تزې یا په زوره زوره خبرې کول شور شغرب جوړول ، ګړ ګوړ کول.

**ګړاچے** :- (ک + ړا + چَے) (و ــــ ګرچند)

**ګړاګو** :- (کُ + ړا + کُو) (اس ، مذ) پنجابے چیلم ، چې لویه ټوپۍ لري او تماکو سره ئې د ګوړې شربت ګډوي.

**ګړاوو** :- (ک +ړا+وو) (اس،مذ) ډېرې خبرې کوونکے ، کړتو، مغزن.

**ګړائے** :- (کَ + ړا +ئے) (اس ، مذ) منګے ، لوے منګے.

**ګړب** :- (ک + ړَ + بْ) (اس ، صوت) (۱) د لړګو د جنګېدلو اواز ، د دروازې زور سره د پورې کېدلو اواز.(۲) د ''زوړ'' د تاکید دپاره راځي.ډېر زوړ .لکه : زوړ ګړب سائیکل.

**ــــ (او) ګړوب** :- (ــــ (او) ک + ړو + ب) (۱) د لړګو د خیزونو د جنګېدلو اواز، د دروازې ، کړکو زورسره پوله پسې پورې کېدلو اواز (۲) درز ، درُوز (۳) ګړګوړ.

**ګړب** :- (ک + ړَ + بْ) (اس ، مذ) د مړو منړکانو د نیولو (لرګینه) پنجره.

**ګړبا** :- (ک + ړَ + (ب) با) (اس ، صوت) (۱) د ګړب ګړب (پرله پسې) اواز (۲) د لرګونه د جوړ شوو خیزونو پرله پسې د جنګېدلو اواز (۳) د دروازې د تنبو د جنګېدو اواز (۴) مجازاً تېزې تېزې خبرې ، د جګړې خبرې.

**ګړباوو** :- (ک + ړَ + با + وو) (اس ، مذ) ډېرې خبرې کوونکے ، په زوره زوره یا تُندې تُندې خبرې کوونکے.کړتونے ، کړته ، ګړبند.

**ګړباوه** :- (ک + ړَ + با + وَ) (اس، مو ، ج ــــ وې) د اوبو د وتو ځاے ، د اوبو مخرج.

**ګړ بړ** :- (ک + ړْ + بَ + ړْ) (مذ ، مف) (۱) بد انتظامي ، بد امني ، بې انتظامي (۲) ورانے ، خلل ، اړے ګړے (۳) په ګېډه کښې د ګړګړ اواز (۴) غبن ، بد دیانتي (۵) ګډ وډ ، لاندې باندې.

**ــــ پېدا کول** :- بد انتظامي پېدا کول ، افرٰی تفري پېدا کول ، بدامني پېدا کول ، شور شر پېدا کول.

**ــــ کول** :- (۱) بد انتظامي پېدا کول ، ورانے اچول (۲) بغاوت کول امن خرابول (۳) غبن یا خیانت کول.

**ګړبړے** :- (کَ + ړْ + بَ + ړے) (و ــــ ګړ بړ)

**ګړبن** :- (ک + ړَ + ب + نْ) (صف، مذ ، مو ــــ ه) ډېرې خبرې کوونکے ، کړتو ، مرماغزن.

**ګړبند** :- (ک + ړَ + ب + نْ + دْ) (صف، مذ ، مو ــــ ه) ډېرې خبرې کوونکے ، ګړباوو ، خبر لوځے ، کړتونے.

**ګړبنده** :- (ک + ړَ + ب + نْ + دَ) (اس ، مو ، ج ــــ دې) کاڼیزه زمکه ، هغه ځاے چې لوے لوے کاڼي پرې پراتۀ وي.

**ګړبنۍ** :- (ک + ړَ + ب + نَ + ۍ) (اس ، مو) کاڼیزه زمکه.

**ګړبنے** :- (ک + ړ + بَ + نَے) (اس ، مو، ج ــــ ني) د سرو مچو ګګ ، ښور ، د غومبسو ځاله یا کور.

**ګړبو** :- (ک + ړَ + بو) (اس ، مذ) (۱) ډېرې خبرې کوونکے ، کړتونے (۲) کنایةً : دروغجن سړے ، لاپو.

**ګړبوزه** :- (کَ + ړْ + بو + زَ) (اس ، مو ، ج ــــ زې) لړزه ، رېږدېدنه ، رعشه ، رېږدندے.

**ګړبوزے** :- (ک + ړ + بو + زَے) (اس ، مذ ، ج ــــ زي) د کټې ګوتې او د مسواکې (د شهادت) د ګوتې تر مېنځه فاصله.

**ګړبول** :- (ک + ړَ + بَ + ؤ + لْ) (مص) د دوو سختو یه لرګینو خیزونو په خپله کښې جنګول او د ګړب ګړب اواز ترې پېدا کول.

**ګړبونه** :- (ک + ړَ + بَ + ؤ + نَ) (حمص) د ګړب ګړب اواز اېستنه.د سختو لرګینه خیزونو جنګولو سره اواز ترې پېدا کونه.

**ګړبوونکے** :- (ک + ړَ + بَ + وو + نْ + کَے) (اس ، فا ، ج ــــ کي) د مختلفو خیزونو په خپله کښې جنګولو سره د ګړب ګړب اواز ترې ایستونکے.

**ګړبهار** :- (ک + ړَ +بَ + ها + ر) (اس صوت) (۱) د ګړب ګړب مسلسل اواز ، لړ (۲) د دروازو کړکو د تنبو په خپله کښې د جنګېدلو اواز (۳) د لرګو وغېره سخته خیزونو د جنګېدلو (۴) ګړب ګړوب.

**ګړبېدل** :- (کٍ + ړَ + بې + دً + لْ) (مص) (۱) د سختو خیزونو (لکه د لرګین خیزونو) په خپله کښې جنګېدلو سره اواز پېدا کېدل ، ګړب ګړب کېدل (۲) زړېدل ، زوړ کېدل (۳) خوشې او بېهوده خبرې کول بکواس کول ، عبث لګیا اوسېدل ، تړېدل.

**ګړبېدلے** :- (ک + ړْ + بې + د +لَے) (اس ، مف ، صف) (۱) کنایةً : زوړ ،

ډېراستعمال شوے ـ (مشین وغېره ) چې پُرزې ئې په خپله کښې جنګېږي او اواز پېدا کوي ـ له کاره وتے (۲) زوړ (بني ادم) ـ

**ګړبېدنه** :- (ګ + ړَ + بې + د + نَ) (حمص) (۱) د ګړب ګړب اواز اېستنه ، ګړب ګړب کونه (۲) زړېدنه (۳) خوشې لګیا اوسېدونه ، خوشې بې فائدې خبرې کونه ـ

**ګړبېدونکے** :- (ګ + ړَ + بې + دو + ن + کَے) (اس ، مف ، ج ـــ کي) (۱) زوړ څیز چې مختلفې حصې ئې په خپله کښې جنګېږي او اواز پېدا کوي ـ لکه : ګړبېدونکې ټانګه (۲) عبث خبرې کوونکے ، بکواسي ـ

**ګړبېدۀ** :- (ګ + ړَ + بې + د) (و ـــ ګړبېدنه)

**ګړبېزن** :- (ګَ + ړْ + بې + ز + نْ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه سړے چې هر وخت ئې پوزه د چخو وغېره نه ډکه وي ـ خیرن پیرن سړے ـ قرمیزن ، کړمیزن ـ متل : د کور لور خور ګړبېزنه وي ـ

**ګړپ** :- (ګ + ړ + پْ) (اس ، مو ، ج ـــ پې) ګپ ، مجلس ، خبرې اترې ـ

**ګړت** :- (ګَ + ړ + تْ) (اس ، مذ) د یوې ژبې یو لفظ ، تِکے ، ګړ ـ

**ګړجن** :- (ګَ + رْ + ج + نْ) (صف ، مذ) رقیب ـ

**ګړچ** :- (ګ + ړ + چْ) (اس ، صوت ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) د کوم څیز د لواړ تېرولو اواز ـ د نغړدلو اواز ، غړچ (۲) د نرم څیزونو د جنګېدلو اواز ـ

**ګړچاوو** :- (ګ + ړ + چا + وو) (اس ، مذ) هغه سړے چې زوم د سخر (خسر) کره بوځي او پېژند ګلوي ئې کوي ـ

**ګړچاوو** (۲) :- (ګ + ړ + چا + وو) (صف) (۱) هغه سړے چې زر زر خبرې کوي ـ تُند خولے (۲) جنګیالے ، هر چا سره خولۀ لګوونکے ، جګړمار ـ

**ګړچند** :- (ګ + ړ + چ + نْ + د) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) د ګړچ ګړچ اواز کوونکے ، سستې تنبې یا بل کوم داسې څیز چې په حرکت سره اواز ورکوي (۲) زر پوهېدونکے ، زود فهم ، له واره پوهېدونکے ـ

**ګړچول** :- (ګ + ړ + چَ + ؤ + لْ) (مص) د دروازې تنبې یا داسې نور کوم سست څیزونو نه په خپله کښې په جنګولو یا خوزولو اواز اېستل ، د ګړچ ګړچ اواز اېستل ـ

**ګړچه** :- (ګ + ړ + چَ) (اس ، مو ، ج ـــ چې) سرسري یا زباني دعوٰی ـ

**ګړچهار** :- (ګ + ړ + چَ + ها + رْ) (اس ، صوت) د ګړچ ګړچ مسلسل اواز ، ګړچے (و ـــ ګړچ) ـ

**ګړچے** :- (ګ + ړ + چَے) (اس صوت) (۱) د ګړچ ګړچ پرله پسې اواز ، د غړچ اړچ اواز (۲) د څیزونو د لواړ تېرولو اوازونه ـ

**ګړچېدل** :- (ګ + ړ + چې + د + لْ) (مص) (۱) د ګړچ ګړچ اواز کېدل څیزونو د لواړ تېرولو اواز کېدل ـ (۲) د دروازې یا د بل کوم سست څیز په حرکت سره مسلسل اواز کول ـ

**ګړد** :- (ګ + ړْ + د) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) غونډ ګول ، غونډ مونډ (څیز) (۲) ټیټ تلونکے سړے ، ټیټکے (۳) مندرے ، لوېشتکے ـ

**ګړد** :- (ګ + ړْ + د) ټول ، همه ، تمامي ، همګي ، (د ګرد ـ تلفظ دے)

ـــــ **کېدل** :- جمع کېدل ، ټولېدل ، یو ځاے کېدل ـ

**ګړد** :- (ګَ + ړْ + د) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) دوړه ، نرۍ خاوره چې په څیزونو پرته وي ـ یا پرې ووزي ـ خاورې چې باد سره الوزي ـ غبار ، (دا اصلاً د فارسي د "ګرد" پښتو تلفظ دے) ـ

**ګړ دوړ** :- (ګ + ړْ + دَو + ړ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د اسونو زغل ، ګوړ دوړ ، د اسونو په ضد یا په مقابله کښې زغلونـه ، رېس (هـ : ګُهړ دوړ یا ګهوړ دوړ) ـ

**ګړدولے** :- (ګَ + ړْ + دو + لَے) (اس ، مذ ، ج ـــ لي) د تنبو د ستنې غونډ لرګے چې په مېنځ کښې ئې سورے وي ـ

**ګړده** :- (ګ + ړْ + دَ) د ګرد تانیث دے ـ

ـــــ **دنیا** :- (ـــــ دُ + نْ + یا + ن)

ـــــ **نړۍ** :- (ـــــ نَ + ړ + یَ) درسته دنیا ، ټوله دنیا ـ

ـــــ **ورځ** :- (ـــــ و + رَ + (د) ز) درسته ورځ ، ټوله ورځ ـ

**ګړدۍ** :- (ګ + ړْ + دَ + یَ) (اس ، مو) د څرخې د دُوک ، چرمکۍ بورک ، د څرخې هغه وړوکے شان څیز چې د دُوک سر کښې لګېدلے وي چې تار د حد دننه پاتې نۀ شي ـ

**ګړدۍ** :- (ګ + ړْ + دَ + ی) (اس ، مو) حلقه ـ

**ګړدۍ کنډوله** :- (ګ + ړ + دَ + ی + کَ + نْ + ډو + لَ) (اس ، مو) یو قسم بوټے ـ

**ګړدے** :- (ګ + ړْ + دَے) (اس ، مذ ، ج ـــ دي) (۱) د څرخې د دُوک چرمکۍ ، ګړدۍ ، بورک (۲) ټیټکے ، مندرے (سړے) ـ

**ګړدې لېچې** :- (ګ + رْ + دې + لَې + چې) (اس ، مذ) د مټ هډوکے ـ

**ګړز** :- (ګ + رَ + زْ) (اس صوت) (۱) د وریځو اواز ، ګړ (۲) درز ، د ټوپک یا د ګولۍ وغېره د خلاصېدو اواز ـ

ـــــ **ګړوز** :- (ـــــ ګ + ړُو + ز) (اس صوت) (۱) د وریځو پرله پسې اواز ، ګړ ګوړ (۲) د وریځو د اواز په شان د ګولو وغېره د پرله پسې خلاصېدلو اوازونه ـ

**ګړز** :- (ګ + رَ + (ز) زَ) (و ـــ ګړزهار)

**ګړزول** :- (ګ + رَ + زَ + ؤ + لْ) (مص) (۱) د ګړز ګړز اوازونه اېستل ، دوه سخت یا فلزي (دهات) څیزونه په خپله کښې پرله پسې جنګول او اواز ترې اېستل (۲) چاسره دښمني پالل ، چا سره دښمني او جنګ جګړې جاري ساتل ، ډزول ـ

**ګړزهار** :- (ګ + رَ + زْ + ها + ر) (اس ، صوت ، مذ) (۱) د ګړز ګړز مسلسل اواز ، ګړز ګړوز ، د وریځو پرله پسې اوازونه (۲) د ګولو یا پټاخو وغېره پرله پسې د خلاصېدو اوازونه ـ

**ګړزے** :- (ګ + رَ + زَے) (و ـــ ګړزهار)

**ګړ ګړ** :- (ګْ + ړْ + ګ + ړْ) (اس صوت) (۱) د سخت څیز د متواتر جنګېدلو یا د پل د ګړزېدلو اواز (۲) قُړ قُړ ، د ګېډې د باد اواز ، (۳) د چیلم د څښلو اواز ، قُړ قُړ ـ

**ګړ ګړ** :- (ګ + ړْ + ګَ + ړْ) (اس صوت) د خېټې اواز ، کُړ کُړ ـ

**ګړ ګړو** :- (ګَ + ړْ + ګَ + ړو) (اس ، مذ) ګړ ګړ کوونکے ، ګړړېدونکے

ـــــ **بابا** :- (ـــــ با + با) (ماشومان) وریځ چې په کښې ګړز ګړوز وي ـ (ماشومان وائي چې ګړ ګړو بابا راغے) ـ

**ګړ ګړے** :- (ګ + ړْ + ګ + ړَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) ګړګے ، کړکړے ، څرخ ، هغه غونډ لرګے چې پړے پرې تاوؤلے شي ـ

**ګړګړے** :- (ګ + ړْ + ګَ + ړَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) څرخۍ ، د لرګي هغه څیز چې د کوهي پړے پرې تاوېږي ـ

**ګړ ګوتۍ** :- (ګَ + ړْ + ګو + تَ + ی)

**ګړګوتے** :- (ګَ + ړْ + ګو + تَے) (صف) د ویښتو صفت دے ـ ګلګوتے ، ګاړګوتے ، ول ول ، تاؤ راتاؤ ـ

**ګړ ګوزا** :- (ګَ + ړْ + ګو + زَ) (اس ، مو ، ج ـــ زې) رېږدندے ، لړزه (چې د تبې په وجه په بني ادم راځي) ـ

ـــــ **راتلل په چا** :-

ـــــ **نیول** :- (۱) د تبې لړزه راتلل ، سره لوې راتلل ، رېږدېدل ـ (۲) مجازاً وېره راتلل ، د وېرې رېږدېدل ـ

ـــــ **راوستل په چا** :- مجازاً وېره راوستل ، ډېر زیات وېرول ، د وېرې رېږدندے راوستل په چا ـ

ـــــ **وهل** :- لړزېدل ،رپېدل ، د يخنۍ يا د تبې له کبله د بدن لړزېدل۔

**ګړګے** :- (ګ + ړْ + ګے) (اس ، مذ ، جــــ ګي) ګړګړے ، لغړندونکے ، (د لرګي يا د فلز (دهات) هغه غونډ کټ کړے څيز چې د کوهي وغېره پړے پرې ګرځي) څرخ چې پړے وغېره پرې تاوؤلے شي۔

**ګړګيچو** :- (ګَ + ړْ + ګي + چو) (صف) بوده ، کمزورے۔

**ګړماچے** :- (ګ +ړْ +ما +چَے) (اس ، مذ ، جــ چي) ګړونج، ګروچے۔

**ګړماګړ** :- (ګ +ړْ +ما+ ګ + ړْ) (اس ، مذ ) شور و شغرب ، شورغوغا ، شور شار

ـــــ **کول** :- شور شغربه جوړول ، شور غوغا کول۔

**ګړمب** :- (ګ + ړَ + مْ + ب)

**ګړنب** :- (ګ + ړَ + نْ + ب) (اس صوت) د توپې د بم يا د لويې ګولې خلاصېدو اواز۔

**ګړمبا** :- (ګ + ړَ + مْ + با)

**ګړنبا** :- (ګ + ړَ + نْ + با) (وــــ ګړمبهار)

**ګړمبهار** :- (ګ + ړَ + مْ + بَ + ها + ر))

**ګړنبهار** :- (ګ + ړَ + نْ + بَ + ها + ر) (اس ، صوت ، مذ ) مسلسل د ګړمب ګړمب اواز۔د توپو ، بمونو وغېره د پرله پسې خلاصېدلو اواز۔

**ګړمچے** :- (ګ + ړَ + مْ + چَے) (وــ ګړماچے)

**ګړمبزے** :-(ګ +ړْ +مې +زے) (اس ،مذ ) ګړينګ ،ګړنګ ، ګړېبزے۔

**ګړنج** :- (ګ + ړ + ں + ج) (اس ، صوت) دفلزي (دهات واله څيز) د جنګېدلو سپک شان اواز ، ګړنګ۔

**ګړنج** :- (ګ+ړَ+ں+جْ) (اس ، جم) بې معنې غږ ، داسې لفظ چې معنٰی نهٔ لري۔

ـــــ **اچول** :- (۱) ډېر په ورو اواز خبره کول ، (۲) داسې ورو لفظ د خولې اېستل چې بل ئې په مطلب پوهـ شي۔(۳) خاموشي اختيارول ، جواب نهٔ ورکول۔

ـــــ **نهٔ کول** :- د خولې نه اواز نهٔ ختل ، ګړنج نهٔ ختل ، د وېرې هېڅ لفظ د خولې نه / څخه نهٔ وتښکل۔

**ګړنجانے** :- (ګ + ړ + نْ + جا + نَے) (اس ، مذ ، جــــ ني) جرس۔

**ګړنجول** :- (ګ + ړ + ں+ جَ + ؤ + لْ) (مص) جرس يا د بل کوم فلزي (دهات واله) څيز نه اواز وتښکل ، کړنګول۔

**ګړنجهار** :- (ګ +ړَ+ں +جَ + ها +ر) (اس ، صوت) د ګړنج ګړنج اواز ، د جرس اواز ، د فلزي څيزونو په خپله کښې د جنګېدلو اواز ، کړنګهار۔

**ګړنجے** :- (ګ + ړَ + ں + جَے) (اس ، صوت) (وــ ګړنجهار)۔

**ګړنجېدل** :- (ګ + ړَ + ں + جې + د + لْ) (مص) د ګړنج ګړنج (مسلسل) اواز کول ، کړنګېدل ، د جرس غړېدل ، د جرس په شان مسلسل اواز پيدا کول ، د فلزي څيزونو په خپله کښې په جنګېدو مسلسل اواز پيدا کېدل ، ټنګېدل۔ د ټنګ ټنګ مسلسل اواز کول ، زما په کوټه کښې به هم دوشۍ او بدنۍ ګړنجېدې۔

**ګړنجے کتار** :- (ګ + ړ + ں + جَے + کَ + تا + ر) (اس ، مذ ) د هلکانو جينکو يو ه لوبه ده چې لاسونه د يو بل د څټ نه چاپېره کړي او پېرونه خوري۔

**ګړند** :- (ګ + ړ + نْ + د ) (صف ، مذ ، موــــ ه) ډېرې خبرې کوونکے ، ژبه ور ، خبه ور ، کړتو ، کړتونے ، ډېر ګړېدونکے۔

**ګړند** :- (ګَ + ړَ + نْ + د )( اس ، مذ) يو غرئيزه ازغنه (اغزنه) ونه۔

**ګړندر** :- (ګ + ړَ + نْ + د + رْ) (اس، مذ ، جــونه) شمېر، شماره۔

**ګړندوالے** :- (ګ + ړَ + نْ + د + وا + لَے) (صف) تېز والے ، په تګ کښې تېزي۔

**ګړنده** :- (ګ + ړ + نْ + دَ) (صف، مو) د "ګړند" تانيث دے۔

**ګړندۍ** :- (ګ + ړ + نْ + دَ + ی) (اس، مو) چرمبنکۍ ، څرمبنکۍ (کورنۍ)

چخورکے۔

**ګړندۍ** :- (ګَ + ړَ + نْ + دَ + ی) (اس ، صف، مو) د "ګړندے" تانيث دے۔

**ګړندے** :- (ګ + ړَ + نْ + دَے) (صف ، اس ، مذ ، جــــ دي) (۱) تېز تلونکے ، په تګ کښې چاخ ، زر زر تلونکے (۲) چست او چالاک (۳) مجازاً ځيرک ، ولي (الله)۔

ـــــ **توب** :- (ــــ تو + ب)

ـــــ**والے** :- (ــــ وا + لَے) (اس ، مذ ) (۱) تېزي ، تېز تلنه (۲) چستي ، چالاکي (۳) بزرګي ، ولي توب۔

**ګړنګ** :- (ګ + ړ +ن +ګْ) (اس ،مذ) د پوزې ګنده ماده ،قنې ،کڼ ګړينګ۔

**ګړنګ** :- (ګ + ړَ + نْ + ګ) (اس ، مذ ، جــــ ونه) (۱) کنده ، پاڼ ، په زمکه يا په غرۀ غرۀ کښې ډېر جور، ژور ځاے ، ژوره کنده ، چې په کښې د پرېوتلو وېره وي۔

پــه ورو ورو باندې قدم کښېږده خوشحـاله
خداے دې پل د چا خطا نهٔ کړي ګړنګ دے (خوشحال خان)

(۲) ډېر لوړ د يوال (ظفر) د غرۀ يا د درياب لوړے کمر۔

په ـــــ **کښې پرېوتل** :- لفظي ، په ډېر ژور/ جور ځاے کښې پرېوتل مجازاً : په داسې مصيبت يا لانجه کښې اخته کېدل چې خلاصون ترې ګران وي۔

**ګړنګچ** :- (ګ + ړ + ن + ګ + چْ) (اس ، مذ) د يوې ميوې نوم۔

**ګړنګن** :- (ګ + ړ +ن + ګ + نْ) (صف ، مذ ، موــــ ه) هغه سړے چې پوزه ئې هر وخت د ګړنګ نه ډکه وي۔ کڼ مېزن ، ګنده او سېدونکے۔

**ګړنګوش** :- (ګ + ړ + نْ + ګو + ش) (وــــ ګړنګن)

**ګړنګوک** :- (ګ + ړ + ن + ګو + ک) (وــــ ګړنګن)

**ګړنګونے** :- (ګ + ړَ +نْ + ګو + نَے) (اس، مذ ، جــــ ني) ګړيال ، د مختلفو داتونو ( فلزونو) نه جوړه شوې غونډه ټيکلۍ ، چې په څهٔ څيز ګذار ورکړے شي نو تېز اواز کوي۔

**ګړو** :- (ګ + ړُو ) (اس ، مذ ، جــ ګان) چيلم۔

**ګرواز** :- (ګَ +ړْ +وا + ز) (صف ، مذ ، موــ ه) (۱) ارت ، پراخ (۲) د کنځلو په طور هم وئيلے شي۔ متل : پيشو ګروازې خپله خوري په سترګو پټو ، د بل خوري په سترګو وازې۔

**ګړوب** :- (ګَ + ړو + ب) (اس ، صوت) (۱) د کوم څيز په اوبو کښې د غورزېدلو اواز (۲) دا لفظ تابع مهمل په طور ګړب سره راځي۔ او د تسلسل معنې ورکوي۔(وــ ګړب ګړوب)

ـــــ **کېدل** :- يو لوے اواز سره پرې وتل ، غرب سره راخلاصېدل۔ لکه : د کوئټې ښهر په زلزله کښې يو مخ سره ګړوب شو۔

**ګړوب** :- (ګ+ ړو + ب) (صف ، مذ ، موــ ه) (۱) اوبجن (۲) توئے بهېدلے۔

**ګړو بړ** :- (ګَ + ړو + بَ + ړْ) (اس ، مذ ) (۱) خبرې ، ګفتګو (۲) ګړه بړه ، سترې مشې خوار مشي۔

ـــــ **کول** :- (۱) خبرې کول ، ګفتګو کول (۲) ګړه بړه کول ، بړه ګړه کول۔

**ګړوبن** :- (ګ + ړو + ب + نْ) (صف ، مذ ، موــ ه) (۱) بلغمي ، هغه سړے چې سينه ئې هر وخت د بلغم نه ډکه وي۔(۲) ناپاک ، خيرن سړے۔

**ګړوبول** :- (ګ + ړُو + بَ + ؤ + لْ) (مص) په يو ځل ورانول يا خرابول ، کنايةً : خانه خرابي کول۔

**ګړوبے** :- (ګ + ړو + بَے) (اس، مذ) بلغم ، (د سينې)۔

**ګړوبے** :- (ګ + ړو +بَے) (اس ، مذ ) هغه اوبهٔ چې ولې وغېره ته د بند اچولو نه پس هم ترې نرۍ نرۍ بهېږي۔

**ګړوبے** :- (ګَ / ګ + ړو + بَے) (اس ، مذ ، جــ بي) ختې جنې اوبهٔ هغه نرۍ

ختیه چې دبوالونه وغېره پرې لیوولې شي.

**ګړوبې** :- (ګ / ګَ + ړو + بې) (اس ، مذ ، ج ـــ بي) (۱) د ګوړې (ټینګ) شربت (۲) مذاقاً : د ګوړې چائې.

**ګړوبېدل** :- (ګ + ړو + بې + د + لْ) (مص) (۱) د کوټې یا د کور وغېره په یو لې راغورزېدل.(۲) کنایةً : خانه خرابي ، خانه خرابېدل.

**ګړوځه** :- (ګ + ړو + (د) زَ) (اس ، مو ، ج ـــ ځې) هغه تَې چې پې په کښې نئوي.اوچه غولاټخه.

**ګړوز** :- (ګْ + ړو + ز) (اس ، صوت) د ګړز تابع مهمل دے چې د تسلسل معنې ورکوي.(و ـــ ګړز ګړوز)

**ګړول** :- (ګ + ړَ + و + لْ) (مص) (۱) په خبرو کول ، خبرې اېستل (د چانه) (۲) په خبرو خبرو کښې د چا نه پټې خبرې معلومول (۳) حال معلومول د چانه د هغهٔ د زړهٔ حال یا رائې پوښتل.

**ګړونج** :- (ګَ + ړْ + وَ + نْ + جْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه څلور پښیز چې د لرګو نه جوړ وي او منګې وغېره پرې کښېښودے شي.

**ګړونج** :- (ګَ + ړْ + وَ + نْ + جْ) (اس ، مذ) یو قسم لوبه ده چې اتلسو ګیټکو سره کولې شي.

**ګړونجې** :- (ګَ + ړْ + وَ + نْ + جَ + يْ) (اس، مو) د ګړونج تصغیر دے وړوکے ګړونج.

**ګړونه** :- (ګَ + ړَ + ؤ + نَ) (حمص) (۱) په خبرو کونه ، څوک خبرو ته اماده کونه (۲) په خبرو خبرو کښې د چا نه پټې خبرې معلومونه ، خبرې اېسته (۳) حال معلومونه.

**ګړوونکے** :- (ګ + ړَ + وُو + نْ + کَ) (اس ، فا ، ج ـ کي) (۱) په خبرو کوونکے ، (۲) په چل چل د چا نه پټې خبرې اېستونکے.

**ګړوے** :- (ګَ + ړْ + وَے) (اس ، فا ، ج ـــ وي) مرتبان ، د اچار مربې لوښے.

**ګړوونے** :- (ګ + ړو + یُو + نَے) (اس ، فا ، ج ـــ ني) ګړېدونکے ، ویونکے ، بیان کوونکے ،

**ګړه** :- (ګَ + ړَ) (لاحقه) (و ـــ ګړ) لکه : شهباز ګړه

**ګړهار** :- (ګ + ړَ + ها + ر) (اس ، مذ) پرله پسې خبرې کونه ، مسلسله ګفتګو.

**ګړه بره** :- (ګَ + ړَ + بَ + رَ) (اس ، مو) سترې مشې خوار مشې ، د ملاقات په وخت لاسونه ملاوَؤلو سره د روغ جوړ خبرې ، علېک سلېک.

**ګړه بنده** :- (ګَ + ړَ + بَ + نْ + دَ) (اس ، مذ) د غرهٔ لوے غار ، لویه سمڅه ، لوے سمڅ. لوے سُمَت .

**ګړه وال** :- (ګَ + ړْ + وا + ل) (اس ، مع) د سوات د کوهستان یوه قبیله. وائي چې دا د دې علاقې لرغوني اوسېدونکي دي او د پښتنو د سوات ته د راتلو نه اول دلته اباد وو.ځان ته یوه جدا ځبه (ژبه) لري.

**ګړهې** :- (ګَ + ړْ + هَ + ی) (و ـــ ګړی)

**ګړیې** :- (ګَ + ړْ + یَې) (اس مو) په لوے سیند کښې ډېر زیات ژور/ جور ځاے

**ګړی** (۲) :- (ګَ + ړَ + ی) (اس ، مو) (۱) وړوکے شان کلے ، بانډه ، (۲) د لوے کلي په خواکښې یو وړوکے شان کلے یا محلت چې لږ بېرته وي (۳) قلاګۍ ، وړوکې قلا.

**ګړی** (۳) :- (ګَ + ړَ + ی) (اس ، مو) هغه ځاے چېرته چې چینې (چشمې) وي.

**ګړی** (۴) :- (ګَ + ړَ + ی) (اس ، مو) په کانې کښې هغه ژور/ جور ځاے یا قُته چې د باران اوبه په کښې جمع کېږي.

**ګړی** (۵) :- (ګَ + ړَ + یَ) (اس ، مو ، ج ـــ ګان) هغه اله چې وخت ترې معلوموله شي.(هـ ګهړی ، ف : ساعت)

ـــ **ګر** :- (ـــ ګَ + رْ) (و ـــ ګړي ساز)

**ګړی** :- (ګَ + ړَ + ی) (هـ ، اس ، مو) لږ شان ساعت، لږ شان وخت

په ګړۍ کښې و سړي ته
څو څو چارې که دوځار (حمید)

(هـ ـــ ګهړي)

ـــ **په ګړی** :- (ـــ پَ ، ګَ + ړَ + ی) (پ تر ، اس ، ظر) ساعت په ساعت ، بیا بیا

دا ته چې ځې اخر به لاړ شې
ماته ګړۍ په ګړۍ مه وایه چې ځمه (ټپه)

ـــ **شبه** :- (ـــ شَ + بَ) (پ تر ، مو) لږ شان وخت، لږ ساعت.

ـــ **کښې توله ګړی کښې ماشه** :- بې اعتباره سړے ، وخت سره بدلېدونکے سړے ، غېر مستقل مزاجه سړے.

**ګړی** (۲) :- (ګَ + ړَ + ی) (اس ، مو) حلقه ، شپول ، هاله.

**ګړے** :- (ګ / ګَ + ړَے) (لاحقه) د پښتو لاحقه ده چې اسمونو پسې لګولې شي چې اسم فاعل ترې جوړ شي.لکه : جرنده ګړے.

**ګړے** :- (ګَ + ړَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) منګے (هـ ګهړا)

**ګړے** :- (ګَ + ړَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) ماستهٔ خرڅوونکے.

**ګړیال** :- (ګَ + ړْ + یا + ل) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د وخت ښودلو هغه لویه ګړۍ چې عموماً په دېوال لګولې شي.(هـ ګهړیال).

**ګړیال** (۲) :- (ګَ + ړْ + یا + ل) (هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د خاص مادې نه جوړ شوے هغه غونډ شان ککوړے چې په ډبکې وهلو سره په زوره اواز ورکوي.(عموماً په مدرسو کښې پکارولې شي.) (هـ ګهړیال).

**ګړیالي** :- (ګَ + ړْ + یا + لِي) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) (۱) هغه سړے چې په خپل مقرره وخت (د سکول مدرسې وغېره) ګړیال غږوي . (۲) د هندوانو په مندرونو کښې ګړیال غږوونکے.

**ګړې بړې** :- (ګ + ړَے + بَ + ړَے) (۱) د ګړه بره جمع ده.خبرې اترې (۲) د ګړه بره بدل شکل چې د مغیره تورو سره استعمالېږي.

**ګړیچ** :- (ګ + ړِي + چ) (اس ، مذ) هغه لار چې تګ پرې ډېر ګران وي.

**ګړېدل** :- (ګ + ړے + د + لْ) (مص) سره خبرې کول، ګفتګو کول ، بحث کول.

**ګړي ساز** :- (ګَ + ړِي + سا + ز) (اس ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) هغه کس چې د ورانو ګړو (ساعتونو) مرمت کوي.

**ګړیکے** :- (ګَ + ړِي + کَے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) (۱) د اوبو یو قسم لوښے چې خولهٔ ئې تنګه وي.(۲) د ګړي مخفف ، وړوکے ګړے ، منګوټے.

**ګړیکینه** :- (ګ + ړِي + کي + نَ) (اس ، مو ، ج ـ ې) جزغالے ، لښکرې ، ککرۍ ، زرغاله.

**ګړیل** :-(ګ+ړَ + ئ + لْ) (مص) د دېوال وبخ کنستل چې راوغورزېږي.

**ګړیلے** :- (ګ + ړَ + ئ + لَے) (اس ، مف ، ج ـــ لِي) هغه دېوال چې وبخ ئې کنستلے شوے (یا خوړلے شوے) وي.او راغورزېدونکے وي.

**ګړے ماتے** :-(ګَ + ړَے +ما + تَے) (اس ، مذ) د هلکانو د یوې لوبې نوم.

**ګړینک** :-(ګ + ړِي +ن + ک) (اس ، مذ) د پوزې ګنده ماده ، کڼ ، قن.

**ګړینګن** :- (ګ+ ړِي + ن + ګ + نْ) (صف ، مذ، مو ـــ ه) هغه سړے چې پوزه ئې هر وخت د قڼ نه ډکه وي.مجازاً : خیرن ناپاکه اوسېدونکے.

**ګړینګے** :- (ګ + ړِي + نْ + ګَے) (اس، مذ، ج ـ ګي) (۱) جرس (۲) غټې ګنګرو چې د څاروو په غاړه کښې اچوي.

**ګړي واله** :- (ګَ + ړِي + وا + لَ) (اس ، مذ) هغه کس څوک چې د کلو بانډو نه ماستهٔ (د ښهر) بازار ته د خرڅولو دپاره راوړي.

**ګز** :- (ګَ + زْ) (ف ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) د کچ يوه پيمانه ، چې شپږ دېرش انچه يا شپاړس ګرې اوږده وي. عموماً د اوسپنې يا د لرګي نه جوړه وي .درزيانو څخه د کپړې نه جوړه شوې وي چې ورته فيته وائي.

**ــــ ژبه / جبه لول** :- ډېرې خبرې کول ، لحاظ پاس نهٔ کول او جواب ورکول.

**ګز** :- (ګَ + زْ) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) هغه اله چې سرينده (سارنګي) پرې غږوي. ليندۍ.

**ګز** :- (ګَ + زْ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) هغه سيخ (چې د کچ د ګز په شان وي) چې د ټوپک شپېلۍ پرې صفا کوي. پخوا به دې ګز سره د پخوانۍ قسم ټوپک په شپېلۍ کښې د دارو او چرو د اچولو نه پس چيرړې وغېره ورلګولې شوې.

**ګز** :- (ګَ + زْ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) يو قسم غشے دے چې دواړه سرونه ئې تېرهٔ او مېنځ ئې غټ وي.

**ګز** :- (ګَ + زْ) (اس، مذ، ج ــــ ونه) (۱) د لرګي يوه اله چې په تخته باندې پرې پېړې سموي يا هواروي. (۲) د لرګي يو اله چې ګلکاران پرې د دېوال وغېره لېو هواروي.

**ګزابې** :- (ګَ + زا + بَ + ی) (اس ، مو) لوړه دنګه کم عقله او اواره ګرده ښځه.

**ګزار** :- (ګُ / ګُو + زا + ر) (اس ،مذ ، ج ــ ونه) ضرب ، يو وار وهنه "ذ" سره هم ليکلے شي.

**ــــ خوړل** :- (۱) په ځان ضرب خوړل ، يو وار ، په لاس يا په بل څيز وهلے کېدل (۲) نقصان موندل ، تکليف ور رسېدل.

**ــــ کول** :- (۱) ضرب ورکول ، په لاس يا لرګي وغېره (۲) يو ځل وهل

**ــــ ورکول** :- (۱) (و ــ ګزار کول) (۲) نقصان ور رسول.

**ګزار** :- (ګُ / ګُو + زا + ر) (لاحقه) لاحقه ده . اسم سره لګولے شي او د فاعل معنیٰ لري. لکه نمونځ ګزار. ("ذ" سره هم ليکلے شي).

**ګزارش** :- (ګُ / ګُو + زا + ر + شْ) (ف، اس ، مذ، ج ــ ونه / ات) عرض ، بيان ، (په عاجزۍ سره) درخواست ، ("ذ" سره هم ليکلے شي.

**ګزارل** :- (ګُ + ګُو + زا + ر +لْ) (مص) ادا کول ، ترسره کول ، لکه : مونځ ګزارل ("ذ" سره هم ليکلے شي).

**ګزارول** :- (ګُ / ګُو + زا + رَ + وُ + لْ) (مص) غوررزول ، غوزارول ، ښکته يا د ځان نه لرې غورزول.

**ګزاري** :-(ګَ + زا + رِي) (اس، جم) (۱) غټ نسوار (۲) د غنمو خوشې چې غټې غټې وټکولے شي. د غنمو دل کړے خوشې ، متاکې.

**دل ــــ کول** :- غټ غټ کول.

**ګزارېدل** :- (ګُ / ګُو + زا +رې + د + لْ) (مص) غوررزېدل ، ارتاؤ کېدل ، ښکته پرې وتل ، پرې وتل ، لرې ارتاوېدل.

**ګزاف** :- (ګَ + زا + ف) (ف ، اس ، مذ) لاف ، لاپه ، فضول خبرې ، بکواس ، (عموماً لاف سره يو ځاے راځي) لکه : لاف و ګزاف.

**ګزانه** :- (ګَ + زا + نَ) (صف ، مو) د ګزونو په حساب ، د ګزونو په نرخ. لکه : په ګزانه خرڅول.

**ــــ فروشي** :- (ــــ ف + رو + شي) د ګزانې په حساب خرڅونه ، په ګزونو خرڅونه.

ګز بازي :- (ګَ + زْ + با + زِي) (ف تر ، اس ، مو) يو قسم ګډا ده.

**ګزبوره** :- (ګَ + زْ + ب + رَ) (اس ، مو) قناوېز ، کناوېز ، يو قسم ريښمين ښکلي رنګ واله ټوکر.

**ګزبوټي** :- (ګَ + زْ + بو + ټِي) (اس ، مذ ، ج) برګه ، ډاګه ، په چت د اچولو لرګي.

**ګزټ** :- (ګَ + ز + ټْ) (انګ ، اس ، مذ) (۱) اخبار ، روزنامه ، ورځ پاڼه (۲) نوے خبر (۳) مجازاً دروغ خبر.

**ګزټډ** :- (ګَ + زَ + ټِ + ډْ) (انګ ، صف) په سرکاري خاص ګزټ (اخبار) کښې چاپ شوے خبر وغېره.

**ــــ افسر** :- (ــــ اَ + فْ + سَ + رْ) (انګ ، اس، مذ ، ج ــــ ان) هغه سرکاري افسر د چا نامه چې په سرکاري اخبار (ګزټ) کښې چاپ کولے شي. د يوې خاص درجې افسر.

**ګزشت** :- (ګُو + زَ + شْ ت) (ف ، فعل) تېر شهٔ ، واوړېد. وړاندې لاړ.

**سر ــــ** :- (سَ + رْ ــــ) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) په سر تېره په خپل سر چې څهٔ تېر شوي وي. خپل حالات.

**ګزک** :- (ګَ + زَ + کْ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د زخم اوبهٔ نيول ، په زخم کښې اوبهٔ پيدا کېدل ، د زخم خرابېدل.

**ــــ اخيستل** :- په زخم کښې اوبهٔ پيدا کېدل ، د زخم د اوبو په وجه خرابېدل ، ګزک کېدل.

**ــــ بوټے** :- (و ــــ ګزک پاڼه)

**ــــ پاڼه** :- (ــــ پا + ڼ + ه) (اس مو و ج ــ ړې) د بارتنګ پاڼه ، پرهار پاڼه.

**ګزک** (۲) :- (ګَ + زَ + کْ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) (۱) د شرابو يا د اپيم د خوړلو نه پس د خولې خوند بدلولو دپاره چې کوم څيز خوړلے شي (کباب ، تيکې وغېره) (۲) يو قسم متهائي.

**ګزکه** :- (ګَ+زَ+کَ) (اس ، مو ، ج ــ کې) د وړو مرغو د نيولو ، د لرګي دوه ښاخه ، دام.

**ګزلکه** :- (ګَ+ زْ + لَ + کَ) (اس ، مذ) چاړهٔ.

**ګزمزے** :- (ګُ / ګُو + زْ + مُ / مُو + زَے) (صف ، ج ــ زي) هغه سړے چې خبرې نهٔ کوي. چپ اوسي ، ځان ساده باده کړي او د زړهٔ حال چا ته نهٔ وائي. غلے غزے ، ګوز موزے. (۲) مجازاً غلے او چالاک سړے ، د زړهٔ حال نهٔ ښکاره کوونکے.

**ګزمه** :- (ګَ + مْ + مَ) (اس ، مو ، ج ــــ مې) ګشت ، د څوکيدارۍ دپاره په خاص حلقه کښې ګرځېدنه.

**ګزن** :- (ګُ / ګُو + ز + نْ) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) يو قسم بيماري چې په کښې د بدن کوم عضو لکه لاس بېکاره شي او لړزېږي ، فالج. (نور الفاظ د "ګوزن" تر لاندې اوګورئ).

**ــــ وهل** :- د ګزن مرض کېدل،فالج وهل،ګوزن وهل ، ګوزني کېدل.

**ګزول** :- (ګَ + زَ + وُ + لْ) (مص) په ګز کول ، د ګز پيمانې سره کچ کول ، د اوسپنې يا د لرګي ګز (پيمانه) سره مېچ کول ياکچ کول ، په ګزونو اوږدوالے معلومول.

**ګزوے** :- (ګَ + زْ + وَے) (اس، مذ ، ج ــ وِي) هغه غويائے چې په قلبه کښې جوتې شوے وي.

**ګزه** :- (ګَ + زَ) (اس ، جم) د ګز بل رنګ جمع ده. چې د عدد اسم سره راځي. لکه : شل ګزه کپړه.

**ګزی** :- (ګَ + زَ + ی) (اس ، مو) يو قسم غټه کپړه ، خامتا.

**ګزياري** :- (ګَ + زْ + يا + رِي) (و ــ ګزاري)

**ګزېدل** :- (ګَ + زے + د + لْ) (مص) په ګز کېدل ، د ګز پيمانې سره کچ کېد ، د ګزونو په حساب سره اوږدوالے معلومېدل.

**ګزيده** :- (ګُ + زي + دَ) (ف ، صف) چوڼ شوے ، منتخب ، غوره کړے

شوے۔

**گزیده** :- (گُ + زي + دَ) (ف ، اس ، مف ، ج ــ گان) چیچلے شوے ، خوړلے شوے۔د لاحقې په طور استعمالیږي۔لکه : مارگزیده (مار خوړلے)۔

**گزیر** :- (گُ + زِي + ر) (ف ، اس ، مذ) علاج ، تدبیر ، صرف د نفي په شکل کښې د ''ناگزیر'' په شکل کښې استعمالیږي ۔ په معنٰی کښې د ضروري چې رغېدن ترې نۀ شي کېدے۔

**گزین** :- (گَ + زِي + ن) (ف ، لاحقه) د فارسي لاحقه ده۔د ځاے نیولو وغیره معنٰی ورکوي۔لکه پناه گزین ، گوشه گزین۔

**پناه ـــ** :- (پَ + نَا (ه) ـــ) (ف ، تر ، اس ، ج ـــ ان) پناه اخیستونکے ، په پناه کښې راتلونکے ، په حفاظت کښې راتلونکے (عموماً هغه سړے یا اولس چې په څۀ وجه د خپل ملک نه بل ملک ته په کډه لاړ شي)۔

**گزینه** :- (گُ+زِي + نَ) (ف ،لاحقه ، ج ــ نې) د ''گزین'' تانیث دے۔

**گزیني** :- (گُ + زِي + نِي) (ف ، لاحقه) د فارسي لاحقه ده ۔ اسمونو پسې راځي۔او د ''نیولو'' غوره کولو معنې پیدا کوي۔لکه خلوت گزیني۔

**گژدنه** :-(گَ + ژْ + د + نَ) (اس ،مو، ج ــ نې) ساهه ، تنفس، حرکت۔

**گړ** :- (گ+ گُ / ژْ) (اس ، صوت) د دروازې یا د کومو سختو ځیزونو د جنگېدلو اواز۔

**گړ** :- (گَ + گُ /ژْ) (اسم ، ص ، مذ) (۱) هغه سړے چې په ډېره کښې ئې تور او سپین وېښتۀ (تقریباً یو شان) وي۔(۲) مېوه چې نیم پخته وي۔یعني لاښۀ پخه شوې نۀ وي (۳) د مرزانو یو قسم (۴) دورگه ، دورنگه ، ابلق (۵) مجازاً : منافق سړے (۲) هغه سړے چې د وېښتو نه ډک وي ۔ په غوږونو او په پوزه ئې هم وېښتۀ وي۔

**ـــ وېښتے** :- (ـــ وے + خْ / شْ + تَے) (صف ، ج ، تي) هغه سړے چې د ډېرې وېښتۀ ئې څۀ تور او څۀ سپین وي۔خشخاش ډیرے۔

**ـــ وېښتے کېدل** :- داسې عمر ته رسېدل چې د ډېرې وېښتۀ ئې څۀ تور او څۀ سپین شي۔پوخ عمر ته رسېدل۔

**گړکے** :- (گ + گَ/ ژَ + کَے) (و ـــ گړهار)۔

**گړ وېښتے** :- (گ + گَ / ژَ + وے + خْ + شْ + تَے) (پ تر ، اس ، مذ) د غنمو یا د اوربشو لشه۔

**گړ هار** :- (گ + گَ / ژَ ـ ها + رْ) (اس ، صوت) د گړ متواتر اواز ، د دروازې یا د نورو کومو سختو ځیزونو په خپله کښې د پرله پسې جنگېدلو اواز ، گړکے

**گړی** :- (گ + گَ / ژَ + ی) (صف) د سترگو هغه حالت چې مایوسي او نااُمیدي ترې ځرگندیږي۔

**ـــ گړی کتل** :- (۱) د مایوسۍ په نظر کتل ، د نا امیدۍ په نظر کتل ، (۲) د شرم او خجالت په نظر کتل۔

**گس /گځ** :- (گ + سْ) (صف ، مذ ، مو ــ ه) کیڼ ، چپ ، (د ښي ضد) (اصل ئې گځ دے) نور الفاظ د ''گځ'' تر لاندې اوگورئ۔

**د ـــ لاس کار** :- (د ـــ لا+ سْ + کال + ر) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) اسان کار ،په اسانه کېدونکے کار ، لکه : دا خو د گځ لاس کار دے۔

**گس** :- (گَ + سْ) (پ ، صف) مړلے ، مېده کړے۔

**ـــ کول** :- په لنگرۍ کښې مېده کول ، (لکه بادام وغیره) په کاڼي باندې مړلو سره اوړۀ کول۔

**گسار** :- (گُ + سا + ر) (ف ، لاحقه) د فارسي لاحقه ده ۔ اسمونو سره لگي او د لرې کولو معنٰی ورکوي۔داسم نه فاعل جوړوي۔لکه غم گسار۔

**گستاخ** :- (گُ + سْ + تا + خ) (ف ، صف ، مذ، مو ــ ه) بې ادبه ، شوخ ، بې شرمه ، لحاظ ادب نۀ کونکے ، بد لحاظه ، سپین سترگے ناشائسته۔

**گستاخانه** :- (گُ /+ س + تا + خا + نَ) (ف ، صف) د بد لحاظۍ په دود ، د بې ادبۍ په انداز۔لکه : گستاخانه جواب ، گستاخانه رویه۔

**گستاخي** :- (گُ + سْ + تا + خِي) (ف ، اس ، مو) (۱) بې ادبي ، بې لحاظي ، ناشائستگي ، سپین سترگتوب (۲) شرارت ، شوخي۔

**ـــ کول** :- بې ادبي کول ، د مشرۍ وغیره لحاظ نۀ ساتل ، ناشائسته خبره یا حرکت کول۔

**گستر** :- (گُ + سْ + تَ + رْ) (ف ، لاحقه) اسمونو پسې راځي ۔ او د خوروونکي یا لوستونکي معنې پیدا کوي۔لکه : گرم گستر۔

**گستره** :- (گَ + سْ + تَ + رَ) (اس ، مو ، ج ــ رې) سخۍ چې ځوانۍ ته نژدې شوې وي۔

**گسسته** :- (گُ + سْ + س + تَ) (ف ، صف) شلېدلے ، قطع شوے۔

**ـــ کېدل** :- شلېدل ، قطع کېدل ،

مضبوط مزے د تمکین مې گسسته شۀ

پیوند ناخلي لـه عیوقه لهٔ کېوانه (حافظ)

**گسلاني** :- (گَ + سْ + لا + نِي) (اس ، مو) شلونه ، قطع کونه (نورو الفاظو سره راځي۔)

**گسه/گځه** :- (گ + سَ) د ''گس'' تانیث دے ۔لکه : گسه/گځه سترگه مې رپي

**گسه** :- (گَ + سَ) (اس ، مو ، ج ــ گسې) دیکه ، ټېله ، جنگېدنه یا جنگونه (د بدن) بدن سره د بل کس بدن له دیکه ورکونه۔

**ـــ خوړل** :- (۱) دیکه خوړل (۲) مجازاً تاوان یا نقصان موندل (۳) دوکه خوړل ، دوکه کېدل۔

**ـــ ورکول** :- (۱) بدن سره د بل کس بدن له دیکه ورکول ، بدن سره ټېل وهل (۲) مجازاً دوکه ورکول ، په نقصان ، تاوان کښې راوستل (۳) خراب مال بدلول گسه کول (۴) (بازاري) د نارینه پټ اندام له دبل (زنانه یا هلک) پټ اندام سره جنگول۔د بدکارۍ د عمل په شان حرکت کول۔

**ـــ وهل** :- (و ـــ گسه ورکول (۱ او ۴)

**گسه** (۲) :- (گَ + سَ) (اس ، مو ، ج ــ گسې) هغه لرگے چې د گوړې شربت د پخولو په وخت په کښې وهلے شي۔

**گسې** :- (گَ + سې) (۱) د ''گسه'' جمع ده ۔(۲) د ''گسه'' بدل شکل چې د مغیره تورو راځي۔

**ـــ خوړل** :- (و ـــ گسه خوړل)۔

**ـــ ورکول** :- (و ـــ گسه ورکول)۔

**د ـــ کار** :- (د ـــ کا + ر) (بازاري) کوني توب۔

**گسے /گځے** :- (گ + سَے) (صف، ج ــ سِي) هغه سړے چې د ښي لاس کارونه په گځ (کیڼ) لاس کوي۔(گځے)۔

**گسیا** :- (گَ + سْ + یا) (هـ ، صف) مېنلے شوے ، سولولے شوے ، (هـ : گهسنا ، سولول)۔

**ـــ کول** :- (۱) سولول ، مېنل (۲) تراشل (۳) مېده کول۔

**ـــ کېدل** :- (۱) سولېدل ،مېنلے کېدل (۲) تراشلے کېدل (۳) مېده کېدل۔

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لَے) د سولېدلو حالت ، د مېنلے کېدلو حالت۔

**گشت** :- (گَ + شْ + ت) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) گرځېدنه ، سېل (۲) د څوکیدار یا د پولیس والهٔ په خپله حلقه کښې گرځېدنه۔

**ـــ کول** :- (۱) گرځېدل ، سېل کول ، چکر لگول (۲) د څوکیدار یا د پولیس والهٔ په خپله حلقه کښې گرځېدل۔

**گشت** (۲) :- (گَ + شْ + ت) (ف ، لاحقه) د فارسي لاحقه ده ۔ د گرځېدنې معنٰی ورکوي۔اسمونو سره لگولے شي۔لکه گُل گشت۔

**گشت (۳)** :- (گَ + شْ + ت) (صف، مذ ، مو ـــ ه) بخن ، په شان ، غوندې ،
لکه : شين گشتے ، شين بخن.

**گشت** :- (گَ + شْ + ت) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) وار ، ځل. لکه : دو گشته
کرايه راځخه غواړې ؟ چې بل گشت راته داسې ونۀ وائې.

**بل ـــ** :- (ب + لْ ـــ) بل وار ، بل ځل ، بيا ، دوباره ، لکه : بل گشت داسې
ونۀ کړې.

**گشته** :- (گَ + شْ + تَ) (ف ، اس ، مف) گرځېدلے ، پستنه شوے.

**بر ـــ** :- (بَ + رْ ـــ) (ف ، تر ، اس ، مف) پستنه گرځېدلے ، واپس شوے
، اړولے شوے ، اوړېدلے ، برخلاف شوے.

**گشتي** :- (گَ + شْ + تيْ) (ف ، صف ، صف) گرځېدونکے ، گشت کوونکے.

**ـــ چيټۍ** :- (ـــ چې + ټَ + ی) (فپ ، تر ، اس ، مو) هغه دفتري
چيټۍ چې مضمون ئې يو شان وي. خو مختلفو کسانو ته ورلېږلے
شي. (انگ : سرکُلر).

**گشتۍ** :- (گَ + شْ + تَ + ی) (صف ، مو) (۱) گرځېدونکې ښځه ، سبلانۍ
ښځه (۲) مجازاً : اواره گرده ښځه ، بدچلنه ښځه (۳) د کنځلو په طور په
دويمه معنٰی کښې استعمالېږي. بدچلنې ، زناکارې.

**گشتے** :- (گَ + شْ + تَے) (صف ، مذ ، ج ـــ ان) (۱) گرځېدونکے ، گشتونه
لګوونکے (۲) اواره گرد ، خوشے گرځېدونکے.

**گشنيز** :- (گَ + شْ + نيِ + ز) (ف، اس ، مذ) دهنيا.

**گښت** :- (گَ + خْ /شْ + ت) (۱) و ـــ گشت ، (۲) نوبت ، ځل ، ځلې (دا املا
درسته نۀ ده چې هېڅوک "گخت" نۀ وائي).

**گفت** :- (گُ /گُو + فْ + ت) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) خبره ، لفظ ، د
خولې نه وتې کلمه يا لفظ (د فارسۍ د گفت نه اخستے شوے دے خو
په پښتو کښې ئې معنٰی بدله شوې ده).

چې خوږ خلک وو د خلکو په خوږو خبرو
هغه خولې گونگې شوې ترې گفت اوريدۀ ولې نۀ شي (حافظ)

**ـــ نۀ ورکول** :- د خولې نه خبره نۀ ايستل ، د خولې نه هېڅ غږ نۀ کول ، د
ويرې نه / څخه هېڅ جواب نۀ ورکول.

**ـــ و شنيد** :- (ـــ (تو) شُ + نيِ + د) (ف ، تر ، اس ، مذ) خبرې اترې ،
خبرې کول او اورېدل. مجازاً : د معاملې په حقله د دوو کسانو يا ټولو
په خپله کښې خبرې اترې. گفتگو.

د رحمان بې يار له ذکره
نۀ زده بل گفت و شنيد

**گفتار** :- (گُ + فْ + تا + ر) (ف ،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) خبرې ، وينا

د دلبر صلح زما په سر قبوله
وبه نۀ کړم د رقيب په گفتار صلح (خواجه محمد)

(۲) خبرې اترې ، گفتگو.

**ـــ کول** :- خبرې کول ، گفتگو کول ، گړېدل.

**ـــ و کردار** :- (ـــ او + کِ + رْ + دا + ر) (ف ، اس ، مذ) خبرې او عمل ،
قول او فعل.

**گفتن** :- (گُ + فْ + تَ + نْ) (ف ، مص) وينا ، قول

لاتَقُل ژبه قرار لره حافظه
نور عمل په خپل گفتن کړه تل تر تله (حافظ)

**گفته** :- (گُ + فْ + تَ) (اس ، مف) وئيلے شوے ، بيان شوے ، وينا ، بيان ،
وايۀ ، خبره ، قول.

**گفټ** :- (گ + فْ + ټ) (انگ ، اس ،مذ ، ج ـــ ونه) تحفه ، ډالۍ ، هديه.

**گک** :- (گَ + کْ) (لاحقه) د پښتو لاحقه ده. د تصغير معنٰی ورکوي. لکه :
سترګک : وړه سترګه. (اصلاً دا لاحقه صرف "ک" ده. په ځينو لغتونو
کښې د "گک" په شکل کښې ليکلے شوې ده. او د سترګک مثال
ورکړے شوے دے. خو په حقيقت دا مرکب لفظ "سترګه + گ" نه
جوړ شوے دے. د "سترګه" نه "ه" اوغورزېده او سترګک ترې جوړ
شۀ. لکه : سترګک وهل، سترګه پټولو سره چاته اشاره کول.

**گکهړ** :- (گَ + کُهـ + کَهـ + ړْ) (اس ، مع) يوه لويه قبيله ده. ددې قبيلې د
صحيح اصل په حقله اختلاف دے. خو وائي چې اصلاً دا د ايران نه
راغلي وو. او د پنجاب په شمال مغرب (قطب په قبله) سيمه کښې اباد
شوي وو. ډېر تورزن قوم دے. هر بهرني حمله اور سره په نره جنګېدلي
دي. ښۀ د ميرانې ډک تاريخ لري.
خو د راقم الحروف په نزد ککهړ نوم داسې دے چې ايراني يا پښتني نۀ
دے دا هندي دے. کېدے شي چې اصل نوم ئې بل څۀ وو. دلته د راتلو
نه پس بدل شۀ (دوي وائي چې د دوي د غور نيکۀ نوم گوهر وو)
ځيني خلک ورته جکهړ هم وائي. يو کور ئې په اکبر پوره نومې کلي
کښې هم اباد دے.

**گګ** :- (گ + گْ) (اس،مذ،ج ـــ ونه) د سرو مچو کور، د سرو مچو گبين.

**گګر** :- (گَ + گ + رْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) (۱) لوهار ، اهنګر (۲)
قوي او مضبوط سړے ، د صفت په طور هم استعمالېږي. لکه : گګر
سړے : قوي او مضبوطې جوثې واله سړے، تکړه ، پهلوان.

**گګر** :- (گَ + گ + رْ) (هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د اوبو لوښے، خصوصاً د
زېږو منګے (هـ : گهاګر).

**گګروځه** :- (گَ + گْ + رو + (د) زَ) (و ـــ گګروزه)

**گګروڅه** :- (گَ + گْ + رو + (ت) سَ) (و ـــ گګروزه)

**گګروزو** :- (گَ + گْ + رو + زو) د گګروزے (جمع) بدل شکل چې د مغيره ؤ
تورو سره راځي.

**ـــ نيول** :- د تبې په وجه په بدن سخته لړزه راتلل.

**گګروزه** :- (گَ + گْ + رو + زَ) (اس ، مو ، ج ـــ زې) لړزه ، رپندے د تبې په
وجه رېږدېدنه.

**ـــ وهل** :- د تبې له کبله ډېر زيات لړزېدل.

**گګره** :- (گَ + گْ + رَ) (هـ ، اس ، مو ، ج ـــ ې) (۱) يو خاص قسم اوږد
قميص دے چې بره حصه ئې تنګ او د ملا نه ښکته په کښې گڼ
پلېټونه وي. (هـ. گهاګر) (۲) مجازاً : ډېر ارت او اوږد قميص.

**گګرے** :- (گَ + گَ + رَے) (اس، مذ ، ج ـــ ري) اکوړ.

**گګړه** :- (گَ + گْ + ړَ) (اس مو) هغه شګه چې په کښې واړۀ واړۀ کاڼي شامل
وي. يا بالعکس هغه واړۀ واړۀ کاڼي چې شګه په کښې ګډه وي. پرښه ،
شګه او باجري سره ګډه وډه شوې وي.

**گګړه** :- (گَ + گْ + ړَ) (صف) هغه سړے چې د نيت ارادې پوخ وي.

**گګړي** :- (گ + گ + گي / ژي) (اس ، جم) جزغالے، کنبکرے، زرغاله

**گګوشتو** :- (گُ / گو + گو + شِ + تو) (و ـــ گوگوشتو).

**گګۍ** :- (گَ + گَ + ی) (اس ، مو) کلکه سوتلۍ ، ځنۍ ، انځۍ ، هغه کلک
مزے چې د بوجۍ خولۀ پرې گنډلے شي.

**گګيانے** :- (گي / گ + يا + نے) (اس ، مع ، ج ـــ ړي ، مو ـــ ی) د پښتنو د
يوې لوئې قبيلې نوم. ددغې قبيلې يو فرد.

**گګياني** :- (گ + گْ + يا + نْ + ي) (اس ، مع) د پښتنو د يوې لوئې قبيلې نوم
دے. اصلاً د خښي اولاد (خښي خېل) دي. نوم ئې د خپلې غور نيا (
چې گګ نومېده) پسې تلے دے. ددې دوه غټ ښاخونه دي. هوتک او
ځيرک.

**ګل** :- (ګَ + لْ) (ف ، اس ، مذ) غټه غټه ړلۍ ، هغه ړلۍ چې دانې ئې ډېرې غټې وي.

**ګِل** :- (ګ + لْ) (ف ، اس ، جم) خټه ، لوندې خاورې.

ــــ **کار** :- (ــــ کا + ر) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ـ ان ، مو ــ ه) د خټو کار کوونکے ، دېوالونه وغېره خېژوونکے ، معمار.

ــــ **کاري** :- (ــــ کا + رِي) (اس ، مو) د خټو کار ، دېوالونه وغېره خېژونه ، معماري. (لفظي ترجمه ئې په پښتو کښې "ختمار" ده. خو ختمار تش د خټو جوړولو کار کوي. د خښتو د کار کولو معنیٰ نۀ ورکوي)

ــــ **ماله** :- (ــــ ما + لَ) (ف تر ، اس ، مو ، ج ــ لې) د ګلکارانو يوه اله ده چې لېو پرې کوي. (عموماً ورته ګرَماله وائي).

**ګُل** :- (ګُ + لْ) (ف ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) (۱) ګل (ار ـ پهول) (۲) د ګلابو ګل (۳) ښکلے بني ادم (نر) بچے يا هلک يا زلمے ، ښائسته (۴) مصنوعي ګل چې په پڼه يا په جامو لګولے شي (۵) معشوقه ، محبوب (۶) د مشهور روماني قيصې ګل صنوبر هيروئنه ، د صنوبر معشوقه (۷) هغه روپۍ چې قاصد يا استازي له ورکولے شي.

ــــ **افشان** :- (ــــ اَ + فْ + شا + ن) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـ ه) (۱) ګلونه نوستونکے (۲) مجازاً ډېر خوش بيانه ، ښکلې او خوندناکې خبرې کوونکے.

ــــ **افشاني** :- (ــــ اَ + فْ + شا + نِي) (ف تر ، اس ، مو) (۱) ګلونه نوستنه. (۲) مجازاً خوش بياني ، ښکلې خوندناکې خبرې کونه ، (۳) (عکساً او طنزاً) خرابې خبرې کونه ، بې خونده خبرې کونه.

ــــ **اندام** :- (ــــ اَ + نْ + دا + م) (ف پ ، تر ، صف ، مو ــــ ه) د ګل په شان اندامونه لرونکے ، مجازاً : ښکلے ، ښائسته.

اے زما د زړۀ ارامه راشه راشه
سرو قده ، ګل اندامه راشه راشه (رحمان بابا)

ــــ **اندامه** :- (ــــ اَ + نْ + دا + مَ) (۱) د "ګل اندام" تانيث دے. (۲) د زنانه ؤ يو نوم (۳) (معرفه) د بهرام شهزاده د قصې هيروئنه ، د شهزاده او بهرام ښاپيرۍ ، معشوقه.

نۀ به بيا بهرام کچکول په لاس کښې واخلي
نــــۀ بــــه بيــــا د ګل اندامې خريدار شي (حافظ)

ــــ **اوب** :- (ــــ لو / او + ب) (ف پ تر ، اس ، مذ) د غنمو فصل له هغه وخت اوبۀ ورکول څۀ وخت چې ئې لو کولے شي.

ــــ باز :- (ــــ با + ز) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) (۱) ګلونو سره لوبې کوونکے ، ګلونه نوستونکے (۲) د پښتنو د نارينه ؤ نوم.

ــــ **بانګ** :- (ــــ با + ن + ګ) (ف تر ، اس ، مذ) (۱) د بلبل چغار (۲) نعره (۳) انګازه.

ــــ **بيرے** :- (ــــ بَ + بْ + رَے) (اس ، مذ ، ج ــــ رې) يو قسم زنانه څادر چې د رېښمو لوے لوے ګلونه پرې جوړ شوې وي.

ــــ **بدن** :- (ــــ بَ + دَ + نْ) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ــ ه) (۱) د ګل په شان بدن لرونکے ، ډېر ښائسته ، ښکلے (۲) د يو پخواني توکي نوم.

ــــ **برګ** :- (ــــ بَ + رْ + ګ) (پ تر ، اس ، مذ) (۱) د ګل پاڼګۍ (۲) د ځينو محلتونو او اباديو نوم.

ــــ **بکاولي** :- (ــــ بَ + کا + ؤ + لِي) (ف تر ، اس) (۱) د يو سپين ګل نوم (۲) د يوې مشهورې روماني قيصې نوم.

ــــ **بن** :- (ــــ بَ + نْ) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د ګلونو بڼ د ګلونو باغ ، باغيچه.

ــــ **بهار** :- (ــــ بَ + ها + ر) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) (۱) د ګلونو سپرلے يا د سپرلي ګل (۲) په ځينو ښهرونو کښې د اباديو نوم.

ــــ **پلورے** :- (ــــ پ + لو + رَے) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ــــ رِي) ګلونه خرڅوونکے ، ګلفروش.

ــــ **پوش** :- (ــــ پو + ش) (ف تر ، صف ، مذ ، ج ـ ان ، مو ــ ه) هغه څيز چې په ګلونو کښې پټ وي. هغه څيز يا ځائے چې ګلونه پرې انبار وي.

ــــ **پوشه** :- (ــــ پو + شَ) (ف تر ، اس ، مؤ ، ج ــ شې) هغه مؤنث څيز چې په ګلونو کښې پټه وي. لکه : ګل پوشه غوندۍ

ــــ **جړۍ** :- (ــــ جَ + ړَ + ۍ) (و ــــ **ګل زيړۍ**)

ــــ **چين** :- (ــــ چِي + ن) (ف تر ، اس ، صف ، مذ ، ج ــــ ان) ګلونه د بوټو نه شوکوونکے.

ــــ **څېر** :- (ــــ (ت) سے + ر) (صف ، مذ ، مو ــ ه) د ګل په شان ، ښکلے ، ګلفام ، ګلرخ.

ــــ **خندان** :- (ــ (ل) + خَ + نْ + دا + ن) (ف تر ، اس ، مذ) (۱) خندېدونکے ګل ، غوړېدلے ګل (۲) د زنانه ؤ نوم (عموماً ورسره د تانيث دپاره "ه" هم لګولے شي. يعني ګل خندانه.

ــــ **دار** :- (ــــ دا + ر) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) (۱) ګلونه لرونکے ، ګلونو واله ، هغه ټوکر وغېره چې ګلونه پرې چاپه شوې يا جوړ شوې وي (۲) داغونو واله ، داغدار.

ــــ **دان** (۱) :- (ــــ دا + ن)

ــــ **دانۍ** (۲) :- (ــــ دا + نَ + ۍ) (ف تر ، اس ، (۱) مذ ، ج ــ ونه (۲) مو) هغه لوښے چې اوبۀ په کښې پرتې وي او ګلونه په کښې سره د ډانډو کښېښودے شي. چې ډېرې ورځې تازه وي. دا د شيشې هم وي ، خاورين هم او د چينۍ هم.

ــــ **د پيغمبر** :- (ــــ دَ ، پَے + غَ + مْ + بَ + رْ) (پ تر ، اس ، مذ) يو قسم ښکلے ګل

مخ د هسې شان ليدۀ شي په خالونو
کــــه ئې ګــــورې لکه ګل د پيغمبر (خوشحال خان)

ــــ **دسته** :- (ــــ دَ + سْ + تَ) (ف تر ، اس ، مو ، ج ــ تې) (۱) سره د ډانډو ګلونه چې يو ځائے تړلې شوې وي. د ګلونو يو موټے (۲) د سعدي د ګلستان ترجمه ، چې عبدالقادر خان خټک کړې ده.

ــــ **رخ** :- (ــــ رُ + خْ) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ــ ه) د ګل په شان مخ لرونکے ، ګل چهره ، ښکلے ، ښائسته.

ــــ **رخسار** :- (ــــ رُ + خْ + سا + ر) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) د ګل په شان اننګي (بارخو) لرونکے ، ډېر ښکلے ، ډېر ښائسته

عاقبت خو به يو موټے شي د خاورو
ګل عذار او ګل رخسار د دې دنيا (رحمان بابا)

ــــ **رعنا** :- (ــــ (ل) + رَ + عْ + نا) (ف تر ، اس ، مذ) يو قسم ګل چې دوه رنګونه سُور او زيړ لري.

ــــ **رنګ** :- (ــــ رَ + نْ + ګْ) (ف تر ، اس ، مذ ، مو ــــ ه) (۱) د ګل په شان رنګ لرونکے. مجازاً ډېر ښکلے ، ښائسته (۲) د ګل په شان رنګ واله ، سور. لکه : په وينو ګلرنګ شو. (۳) د نارينه ؤ نوم.

ــــ **رو** :- (ــــ رو) (ف تر ، صف ، مذ ، مو) د ګل په شان مخ لرونکے ، ګلرخ ، ښائسته ، ښکلے.

ــــ **ريز** :- (ــــ رے + ز) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ــ ه) ګلونه رژوونکے ، ګلونه ښکته غورزوونکے.

ــــ **زار** :- (ــــ زا + ر) (ف تر ، اس، مذ ، ج ــــ ونه) هغه ځائے چې ګلونه په کښې غوړېدلي وي. د ګلونو نه ډک ځائے ، د ګلونو باغ.

**ـــــ زوپه** :- (ـــــ زُو + پَ) (اس ، مو ، ج ـــ پې) د يو گل نوم دے ځينې خلک ئې د چايو د پاڼو په ځاے استعمالوي.ځينې خلک ورته "د غرۀ چائې" هم وائي.سمسوک هم ورته وائي.

**ـــــ زيري** :- (ـــــ ز + يَ + رِ + ى) (اس مو) نخښه ، نشانه، هدف.

**ـــــ زيرې ويشتل** :- (۱) نخښه ويشتل،نشانه بازي کول (۲) مجازاً : د موقعې مطابق بالکل درسته خبره کول.

**ـــــ شکر** :- (ـــــ شَ+کَ+ رُ) (ف تر،اس، مذ) گل قند ، مشهوره دوائي.

**ـــــ شگي** :- (ـــــ شَ+ گ + ى) (و ـــــ شگي گل)

**ـــــ صد برگ** :- (ـــــ (ل) صَ + دْ + بَ + رْ + گ) (ف تر ، اس، مذ) يو قسم گل چې گڼې پاڼکۍ لري (ار : گېندا ، انگ: ميرى گولډ) ببرکوکو ، ستنکے ، سپلپاڼے.

**ـــــ عذار** :- (ـــــ عَ + ذا + ر) (و ـــــ گل رخسار)

**ـــــ فام** :- (ـــــ فا + م) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) (۱) د گل په شان رنگ لرونکے ، گل رنگ ، ښکلے ، ښائسته (۲) د ښاپيرو په قصو کښې د يو شهزاده نوم (۳) معشوقه ، محبوب (۴) د نارينه ؤ يو نوم (۵) د زنانه په څلورو قسمونو کښې د ټولو نه غوره قسم.

**ـــــ فشان** :- (ـــــ فَ + شا +ن) (و ـــ گل افشان)

**ـــــ فشاني** :- (و ـــــ گل افشان)

**ـــــ قند** :- (ـــــ قَ + نْ + د) (ف تر ، اس، جم) مشهوره دوائي.چې د گلابو د گلونو د پاڼو او د شکرې نه جوړولے شي.گل شکر.

**ـــــ کاري** :- (ـــــ کا + رِي) (ف تر ، اس ، مو) (۱) دگلونو جوړولو کار ، په کپړه ، کاغذ ، دېوال وغېره گلونه انځورونه ، جوړونه (۲) (طنزاً) بې معنٰى کربښې وغېره راښکنه . د کاغذ وغېره په رنگ يا سياهۍ سره گنده کونه.

**ـــــ کېدل** :- په بوټي يا ونه کښې په خپل موسم کښې گلونه پيدا کېدل (چې وروستو ترې مېوه جوړه شي)

**ـــــ گلاچې گل** :- (فپ تر ، جمله) يوه جمله ده چې ماشومان د لوبې د گټلو په وخت وائي.

**ـــــ گون** :- (ـــــ گُو + ن) (ف تر ، صف، مذ، مو ـــــ ه) (۱) د گل په شان رنگ لرونکے ، ښائسته ، ښکلے ، گلرو (۲) چالاکه اس.

**ـــــ گونه** :- (ـــــ گُو + نَ) (ف تر ، اس، مو) غازه ، رنگينه پوډر (سفوف) چې زنانه ئې د ښائست دپاره په مخ لگوي چې مخ د گل په (سور) ښکاري. فېس پاؤډر.

**ـــــ گېډۍ** :- (ـــــ گې + ډَ + ى) (پ تر ، اس، مو) د گلونو وړه شان گېډۍ ، گلدسته (نوې اختراع ده).

**ـــــ گين** :- (ـــــ گِي + ن) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـ ه) گلونو واله ، گلدار ، منقش.

**ـــــ لاله يا لالا** :- (ـــــ لا + لا) (ف تر ، اس ، مذ ) مشهور گل چې سور رنگ لري او مېنځ ئې تور ټکي ټکي وي.

**ـــــ مخه** :- (ـــــ م + خَ) (پ تر ، صف ، مو) د گل په شان مخ لرونکے ، گلرخ ، گلرو ، ښکلے.

**ـــــ مرچ** :- (ـــــ (لے) + م + ر + چْ) (فپ تر و اس) جامه ده.

گوډۍ نۀ اخلم څڅېږي

گل مرچ مې خرابېږي (غاړه)

**ـــــ مېخ** :- (ـــــ مې + خ) (ف تر ، اس، مذ ، ج ـــــ ونه) (۱) يو قسم غټ مېخ چې په سر ئې گل يا ستورے غوندې جوړ شوے وي . د ډول دپاره په دروازو يا صندوقونو لگولے شي.(۲) غټ (سرے) مېخ.

**ـــــ مېخي** :- (ـــــ مې + خَ + ئ) (اس ، مو) د سپينو زرو نه جوړ شوے گل ، چې زنانه ئې عموماً د قميصونو لستوڼو پورې گنډي.

**ـــــ نيلوفر** :- (ـــــ نِي + لو + فَ + رْ) (ف تر ، اس ،مذ) مشهور گل چې په اوبو کښې کېږي.(هـ : کنول ، انگ : لوټس).

**توتکے ـــــ** :- (تو + ت + کَے ـــــ) (پ تر ، اس ، مذ) د بنفشې گل په دارو کښې استعمالېږي.

**خبره په ـــــ بدلېدل** :- د بل په خبره کښې خپله خبره کوونکے ، د بل د خفگان يا اعتراض د لرې کولو دپاره وائي.چې ستا خبره د گل په شان ډېره ښۀ ښکلې ده.خوزۀ دا وايم چې----

**د انځر ـــــ** :- (دَ ، ا + نْ + (د ) ز + رْ ـــــ) د انځر گل ځوک نۀ شي ليدے ځکه داسې څيز ته وائي.چې هغه نۀ موندلے کېږي.نايابه څيز.

**د کاغذ ـــــ** :- (دَ ، کا + غَ + ذْ ـــــ) (فپ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه / ان) هغه گل چې د کاغذ نه جوړشوے وي.مصنوعي گل، چې خوشبوئي نۀ لري . مجازاً : هغه څيز چې اصلاً په کښې څۀ خوبي نۀ وي يا تش رنگ يا ښائست لري.خو وفا يا نورې خوبۍ نۀ لري.

**د ـــــ لبنته** :- (د ـــــ لَ + خْ / شْ + تَ) (فپ تر ، اس ، مو ، ج ـــ تې) د گلونو ځانگه ، مجازاً : نازه ښکلې معشوقه

د پيربابا لارې دي سختې

د گلو لبنتې زۀ د ستا دپاره ځمه (ټپه)

**گل ـــــ** :- (گُ + لْ ـــــ) (سابقه) د فارسۍ لفظ دے.په پښتو کښې د زنانه ؤ نومونو سره د نورو الفاظو نه وړاندې راوستے شي.لکه : گل النساء ، گل اندامه ، گل رخسار ، گل بدن ، (د گل په شان رنگ او شکلې معنې ورکوي).

**گل** :- (گل + لْ) (لاحقه) د فارسۍ لفظ دے.خو په پښتو کښې د لاحقې په طور د نارينه ؤ په نومونو کښې عام استعمالېږي . لکه : همېش گل ، راحت گل وغېره.

**گل** :- (گُ + لْ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه / ان) په سترگه کښې سپين داغ ، چې د سترگې نظر پرې خرابېږي يا بېخي ختمېږي.

**گل** :- (گُ + لْ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه / ان) هغه داغ چې په اور کښې سور کړي څيز سره په بدن ولگولے شي.

**ـــــ کول** :- مړ کول ، (د شمعې يا د ډيوې وغېره).

**ـــــ کېدل** :- د شمعې يا ډيوې وغېره مړ کېدل.

**گلا** :-(گَ + لَ) (هـ ، اس ، مو ، ج ـــ لې) هغه صندوقچه يا شکرۍ چې دکاندار په کښې پېسې ټکې ږدي.(د هندوانو گلا به عموماً د لرگي وه.)

**گلاب** :- (گُ + لا + ب) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) مشهور گل ، (اُر: گلاب ، انگ : روز) (اصلاً دا لفظ " د گل او آب" نه جوړ شوے دے . چې اصل معنٰى ئې د گل اوبۀ يا عرق گل دے . خو عام طور سره اوس ددغې خاص قسم گل د نوم په طور استعمالېږي) (۲) د نارينه ؤ نوم.

**ـــــ جامن** :- (ـــــ جا + م + نْ) (اس ، جم) يو قسم متيائي ده چې خسته غونډ غونډ لډوانو په شان جوړه وي.

**ـــــ چشم** :- (ـــ چَ + شْ / ش + مْ) (ف تر ، صف، مذ ، مو ـ ه) د گلاب د گل شان سترگې لرونکے ، سرې سترگې لرونکے ،سور سترگے.

**د ـــــ اوبۀ** :- (ـــــ او + ب)

**د ـــــ عرق** :- (ـــــ عَ + رَ + قْ) د خاص قسم گلونو نه جوړې شوې خوشبويه اوبۀ

**د ـــــ گل** :- د مشهور گل نوم.(و ـــ گلاب)

**گلابه** :- (گ + لا + بَ) (فا تر ، مو) د گل (خټه) او آب (اوبۀ) مرکب دے . يعنې هغه خټه چې اوبۀ په کښې ډېرې وي.پسته نرمه خټه.

**ګلابي** :- (ګُ + لا + بِي) (اس ، صف) (۱) د ګلابو یو شان رنګ ، کچه سور یا شوخ پیازي وي. (پخوا د ګلابو د ګل همدغه یو رنګ ؤ. اوس د ګلابو د ګلو بې شمېره رنګونه دي. خو مشهور او اصل رنګ هم دغه دے) (۲) نائي ، سر تراش.

**ګلارګين** :- (ګ + لا + ر + ګي + ن) (صف ، مذ ، مو ـ ه) سخت، درشت.

**ګلاس** :- (ګ / ګي + لا + س) (انګ ، اس ، مذ) د اوبو د څښلو اوږد شان لوښے چې بنکته سر ئې تنګ او بره سر ئې لږ ارت وي. اکثر د شیشې وي خو فلزي (د دهات) هم وي.

**ګلاسګو** :- (ګ + لا + س + ګو) (اس ، مع) په برطانيه کښې د يو مشهور ښهر نوم.

**ګلاشک** :- (ګُ + لا + شَ + کْ) (و ـــ ګُلشک)

**ګلالۍ** :- (ګُ + لا + لَ + ئ) د "ګلالے" تانيث.

**ګلالي** :- (ګُ + لا + لِي) (اس ، مو) د شولو يوه قوده.

**ګلالے** :- (ګُ + لا + لَے) (صف، مذ ، ج ـ لي، مو ـــ ئ) د ګل په شان ، ګلرخ ، ښکلے ، پې مخے ، ښائسته.

**ګلانه** :- (ګُ + لا + نَ) (اس ، مو ، ج ـ نې) هغه روپۍ چې استازي یا رببار له ورکولے شي. ګل

**ګلبتو** :- (ګُ + لْ + بَ + تُو) (اس ، مذ) زري تارونه چې په جامو لګولے شي. ګل بتون.

**ګلبخور** :- (ګُ + لْ + بَ + خو + ر) (اس ، مذ) يو قسم ګياه ده چې د دارو په طور په چيلم کښې څښلے شي. ګلخوره، سونګرے.

**ګلبند** :- (ګ + لْ + بَ + نْ + د) (اس، مذ ، ج ـ ونه) ګلوبند ، مفلر.

**ګلتون** :- (ګُ + لْ + تُو + ن) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ګلستان ، هغه باغ چې ګلونه په کښې لګولے شوي وي. (نوي اختراع ده).

**ګلټ** :- (ګ / ګي + ل + ټْ) (اس ، جم) يو قسم ارزان بيعه (دهات) چې سپين رنګ لري. جست.

**ګلټي** :- (ګ + ګل + ټِي) (صف) د ګلټو نه جوړ شوے ، ګلټو (ګيلټو) ته منسوب.

**ـــ ټوپک** :- (ـــ ټو + پَ + کْ) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د ټوپکو يو قسم ، ګليټي ټوپک.

**ګلټبدل** :- (ګ + ل + ټي + د + لْ) (مص) په کوم څيز (کالي وغيره) ګيلټ (فلز) لګبدل ، په ګيلټو جوړېدل.

**ګلټېدل** :- (ګ / ګي + لْ + ټي + لْ) (مص) ګليټېدل.

**ګلخرينګه** :- (ګُ + لْ + خ + رِي + نِ + ګَ) (اس ، مو ، ج ـــ ګې) مشهوره مرغۍ ، ښارونۍ ، ښارو، ځينې خلک ورته زرګره هم وائي.

**ګلخن** :- (ګُ + لْ + خَ + نْ) (ف تر ، اس ، مذ، ج ـ ونه) (۱) د سکروټو يا د انګار کور ، منقل ، انګيټۍ ، اتش دان ، تنور ، نغرے، (ګل سکروټې (سروټکې) ته وائي او "خن" د "خانه" مخفف دے) (۲) د ايرو يا د خزلې (خځلې) د غورزولو ځاے (په دې معنٰی کښې دا د "کل" او خن مرکب دے. کل (کاف سره) په ترکۍ کښې ايرو ته وائي)

چې ځاے مې په ګلشن ؤ هغه زۀ وم راشه ګوره
په هر چېرته چې درومم له ګلخن باندې دېرې کړم (خوشحال خان)

**ګلخوره** :- (ګُ + لْ + خو + رَ) (اس، مو) سونګرے ، بادنجير ، يو قسم ګياه ده.

**ګلخۍ** :- (ګُ + لْ + خَ + ئ) (اس ، مو) هغه اورغالے يا نغرے شان چې وارۀ ئې جوړ کړي. او بيا په کښې ګاځې پخوي.

**ګلخينګے** :- (ګُ + لْ + خي + ن + ګَے) (اس ، مذ، ج ـــ ګي) يو قسم تريخ بوټے دے چې شين ګل کوي.

**ګلدم** :- (ګُ + لْ + دُ + مْ) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) ايراني بلبل ، مطلق بلبل. ددې مرغۍ ګُنې سره ښې سرې وي. پښتو کښې ورته ځينې خلک سُورکونے هم وائي. د دې يو بل قسم زيړکونے دے.

**ګلډ** :- (ګ + ل + ډْ) (اس ، مذ) خرئيلے شوے سر ، هغه سر چې وېښتۀ پرې نۀ وي.

**ګلډ** :- (ګ + لْ + ډْ) (انګ ، اس، مذ) ټولے ، غونډه ، انجمن ، اداره ټولنه ، لکه: رائټرز ګلډ ، د ليکوالو انجمن يا ټولنه.

**ګلډانګ** :- (ګُ + لْ + ډا + ن + ګ) (اس ، مذ) د سپو يو قسم ، چې لويه او پلنه خولۀ لري. (اصلاً دا ټکے د انګرېزۍ د "بُل ډاګ" وران شکل دے).

**ـــ سپے** :- (ـــ س + پَے) (۱) د ګلډانګ د نسل سپے (انګ : بُل ډاګ) (۲) مجازاً : هېڅ بېخه جنګ جګړې ته تيار سړے.

**ګلزار** :- (ګُ + لْ + زا + ر) (س ظر) د ګلونو ځاے ، د ګلونو باغ، ګلستان.

**ګلستان** :- (ګُ / ګُو + لِ + سْ + تا + نِ) (ف تر ، ظر) (۱) د ګلونو ځاے ، د ګلونو باغ ، هغه ځاے چېرته چې د ګلونو بوټي لګولے شوي وي ، چمن (۲) د فارسۍ ژبې / ژبې مشهور اخلاقي کتاب چې د شېخ سعدي تصنيف دے. (۳) د نارينه ؤ يو نوم (۴) د پښتو يو مشهور عوامي شاعر.

**ګلسرين** :- (ګ + لِ + سْ + رِي + ن) (انګ ، اس، جم) د يوې ټينګې مائع دوائي نوم دے. ګليسرين.

**ګلشک** :- (ګُ + لْ + شَ + کْ) (اس ، مذ) يو غرئيز خود رو ګل دے. په لوړو غرونو کښې کېږي او بنفشي رنګ ګلونه کوي. ګلاشک هم ورته وائي.

**ګل شکره** :- (ګُ + لْ + شَ + ک + رَ) (اس ، مو ، ج ـــ رې) د يوې مياشتې نوم ، د سپرې مياشت ، صفر (د قمري کيلنډر دوېمه مياشت).

**ګلشن** :- (ګُ + لْ + ش + نْ) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) چمن ، ګلستان ، د ګلونو ځاے.

**ـــ رو** :- (ـــ (ن) رو + ه) (اس ، مع) د پښتو د نظم او نثر د يوې مجموعې نوم دے. چې راورټي نومې يو پېرنګي ليکلې ده.

**ګلف** :- (ګ / ګُو + ل + ف) (انګ ، اس، مذ) ګاف ، د مشهورې لوبې نوم چې وړوکې شان غونډسکې خاص قسم لرګو سره وهلے کېږي. او خاص قتۍ ته ورلنډولے او بيا په کښې وراچولے شي. د دې خاص لرګو سره د اوسپنې وغيره فلز (دهات) نه جوړ وي.

**ګلکۍ** :- (ګ + لْ + کَ + ئ) (اس، مو) سخۍ ، وړه سخۍ.

**ګلکے** :- (ګُ + لْ + کَے) (اس، مذ ، ج ـــ کي) د "ګل" تصغير دے. وړوکے ګل.

**ګلکے** :- (ګ + لَ + کَے) (اس، مذ ، ج ـ کي) وړوکے سخے ، (د غوا بچے).

**ګلګت** :- (ګ + لْ + ګ + تْ) (اس، مع) د پښتونخوا قطب طرف ته يوه ښکلې علاقه ، او د دې ملک د دارالحکومت نوم.

**ګلګل** :- (ګَ + لْ + ګَ + لْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د نارنج په شان مېوه چې د نارنج نه ډېره غټه او بې کچه ډېره تروه وي.

**ګلګلے** :- (ګُ + لْ + ګُ + لے) (ه ، اس ، جم) پکوړې ، چې د وېسنو ، مسالو نه په غوړو يا تېلو کښې تلولے شي.

**ګلګے** :- (ګُ + لْ + ګَے) (و ـــ ګلکے).

**ګلل** :- (ګ + لَ + لْ) (اس، مع) الائي وال سواتي دي.

**ګلماخۍ** :- (ګُ + لْ + ما + خَ + ئ) (اس، مو) يو قسم کالے دے چې د سپينو زرو نه جوړولے شي. د بادام شکل لري. او په تندرکي (د غوږ او د تندي په مېنځ کښې) اوېزاندولے شي. ځينې زنانه ئې په قميص پورې هم ګنډي. ګل مېخۍ.

**ګل مر** :- (ګُ + لْ + مَ + رْ) (اس، مذ ، ج- ونه) د نمر ګل ، نور پرست ، کاپر ګل

شېرين عمر مې قضا که په هجران کښې
رنګ مې ځکه په زردۍ شو تر ګلمر ښش　　(هجري)

**ګل مکی** :- (ګُ + لْ + مَ + کَ + ی) (اس، مع) (۱) د پښتو د يو روماني قيصې هيروئنه، چې د موسٰی خان معشوقه وه (۲) د زنانه ؤ يو نوم.

**ګلمل** :- (ګَ + لْ + م + لْ) (صف، مذ، مو ــــ ه) الوده، لړلے، په وينو يا په خاورو لړلے.

**ــــ توب** :- (ــــ تو + ب) ککړوالے، الودګي.

**ګلنار** :- (ګُ + لْ + نا + ر) (ف، اس، مذ، ج ــ ونه) (۱) د انار ګل، (''نار'' د ''انار'' مخفف دے) (۲) د انار د ګل په شان يو بوټے چې مېوه نۀ نيسي (۳) د زنانه ؤ نوم کښې استعمالېږي (۴) د انار د ګل په شان رنګ، شوخ سور يا شوخ نارنجي رنګ.

**ګلو** :- (ګَ + لُو) يا (ګُ / ګُو + لُو) (ف، اس، مذ) غاړه، مرۍ.

**ــــ بند** :- (ــــ بَ + نْ + د) (ف تر، اس، مذ، ج ــ ونه) (۱) هغه ريښمين يا ورين اوږده پټه چې د زينت يا د يخنۍ د بچاؤ دپاره د غاړې نه تاوَولے شي. مفلر (۲) د غاړې پټه (۳) د يو کالي (زېور) نوم.

**تر ــــ تېرول** :- د مرۍ نه ښکته کول، خوړل.

**ګلو** :- (ګَ+لو) د ''ګلې'' (جمع) بدل شکل چې د مغيره تورو سره راځي.

**ګلو** :- (ګ / ګي + لو) (اس، مذ) د يو ځېلي نوم دے چې په نورو ونو يا دېوالونو وغېره خېژي. د تبې دپاره د دارو په طور استعمالولے شي.

**ګلو** :- (ګ / ګي + لو) د ''ګلې'' (جمع) بدل شکل چې د مغيره تورو سره راځي. لکه: د ګلو خبرې.

**ګلو** :- (ګُ + لُو) (اس، مذ، ج ــ ګان) هغه لرګے چې د مېچن يا د جرندې تير پرې په اېښې کښې کلکولے شي.

**ګلو** :- (ګُ + لُو) (اس، مذ، ج ــــ ګان) په تاش کښې بُت واله يوه پاڼه چې غُلو او غلام هم ورته وائي.

**ګلو** :- (ګُ + لو) (اس، مذ، ج) د ګُل جمع ده. ګلونه.

**ګلواره** :- (ګَ + لَ + وا + رَ) (اس، مو، ج ــ رې) هغه جوله (ځوله) يا د پرانستې خولې بوجۍ چې په اس باندې بارولے شي.

**ګلوانړ** :- (ګُ + لْ + وا + ن + ړ) (اس، مذ، ج ــ ونه) هغه رسۍ يا پړے په کوم پورې چې د مستو د شاربلو مشک اوېزاندولے شي. او بيا ئې ړکوي.

**ګلوټ** :- (ګَ + لْ + وَ + ټْ) (اس، مذ، ج ــــ ونه) د غوښې لويه ټيکه، د غوښې لويه ټکړه.

**ګلوټه** :- (ګَ + لْ + وَ + ټَ) (اس، مو، ج ــــ ټې) (۱) د غوښې غټه ټکړه، د کلکې ختې چم (۲) غټه نوړۍ، غټه لمړۍ.

**ګلول** :- (ګَ + لْ + ؤ + لْ) (مص) ليو کول، ليوؤل.

**ګلول** :- (ګَ + لَ + ؤ + لْ) د ګالل بدل شکل، زغمل، برداشت کول، لکه: خبره د ګلولو نه ووته.

**ګلول** :- (ګُ + لَ + ؤ + لْ) (مص) ګُل کول، ډيوه وغېره مړه کول، د اور وژل / وجل (ف: ګل کرده).

**ګلولے** :- (ګَ+لَ+ؤ+لَے) (اس، مف، ج ــ لي) برداشت کړے، زغملے.

**ګلونه** :- (ګَ + لَ + ؤ + نَ) (حمص) برداشت (کونه) زغم (کونه) ګالنه.

**ګلونه** :- (ګُ + لُو + نَ) (۱) د ګل جمع ده، ګُلان (۲) د ځينو زنانه ؤ نوم.

**ګلوه** :- (ګ + لْ + وَ) (اس، مو) د غواي هغه څرمن چې خولۀ او څلور طرفه ئې ګنډلې شوې وي.

**ګلوه** :- (ګَ + لْ + وَ) (اس، مو) (۱) د مرزانو يو قسم دے چې غاړه ئې څۀ قدرې سره وي. (۲) مجازاً: کم عقل سړے، احمق.

**تور ــــ** :- (تو + ر ــــ) (پ تر، اس، مذ) د مرزانو يو قسم چې غاړه ئې توره وي. تور غاړے.

**سور ــــ** :- (سُو + ر ــــ) (پ تر، اس، مذ) د مرزو يو قسم چې غاړه ئې ډېره سره وي. که دا سرخي لږه وي نو ورته ''ګلوه'' وائي. خو که زياته وي نو بيا ''سور ګلوه'' نومېږي. عام طور سره ورته سور غاړے وائي.

**ګلوي** :- (ګَ + لْ + وِيْ) (لاحقه) د پښتو لاحقه ده. د اسم نه وروستو راوستے شي او د حاصل مصدر معنې ورکوي. لکه: ورور ګلوي.

**ګله** :- (ګَ + لْ + لَه) (فا، اس، مؤنث) د څاروو، غوايانو، اوښانو وغېره کنډک

**ــــ وان** :- (ــــ وا + ن) (فپ، اس، ج ــ ان) (۱) شپون، ګډې بزې څروونکے، (۲) د غوا غوايانو وغېره ګلې څروونکے.

**ګله** :- (ګ / ګي + لَ) (اس، مو، ج ــــ لې) شکايت، ګيله.

**ــــ ګوښه** :- (ــــ ګُو + (ت) سَ) ګوښه يا ګوسه د ''ګله'' د تاکيد دپاره راځي. ګله شکايت، وړوکے يا کم اهم شکايت.

**ــــ من** :- (ــــ م + نْ)

**ــــ مند** :- (ــــ م+ نْ + د) (صف، اس، مو ــ ه) شکايت لرونکے، د ګلې په وجه خفه يا راضه.

**ګله** :- (ګُ + لَ) (۱) د ګل بدل شکل چې د ندا د توري نه پس راځي. لکه: اے ګله! (۲) کشر ته د مخاطبې په وخت وئيلے شي. اے ګله، اے وړوکيه.

**ګله ګرکے** :- (ګَ + لَ + ګ + رْ + کَے) (اس، مذ) نرۍ مېده شان ړلۍ (ف: برنجک).

**ګله يي** :- (ګَ + لَ + يِي) (صف) هغه مرز چې نورو مرزانو سره په يوه پنجره کښې د اواز دپاره ساتلے شي.

**ګلي** :- (ګ / ګو+لِي) (هـ، اس، مو) د ګلي ډنډې په لوبه کښې د لرګي هغه وړه شان ټوټه چې دواړه طرف ته ئې څوکې جوړې شوې وي.

**ګلي** :- (ګُ + لِي) (هـ، اس، مذ) د سبوانو يو قسم چې تول سُور وي.

**ګلې** :- (ګ / ګې + لې) (۱) د ''ګله'' جمع ده. (۲) د ''ګله'' بدل شکل چې د مغيره تورو سره راځي.

**ګلې** :- (ګُ + لَې) (اس، مو) د ''ګله'' تانيث دے. کشرې وړې جينۍ ته د خطاب په وخت وئيلے شي.

**ګلی** :- (ګَ + لَ + ی) (ه، اس، مو) کوڅه.

**ګلے** :- (ګُ + لَے) (اس، مذ) (۱) د ''ګل'' تصغير دے (۲) د نارينه ؤ نوم (د ګل په ځاے د تصغير په طور ورته ګلے وئيلے شي).

**ګلے** :- (ګُ + لَے) (اس، مذ) د ماشومانو يو مرض، اُم الصبيان.

**ګليا** :- (ګَ + لْ + يا) (هـ، صف) (۱) خوږين، ښۀ پوخ شوے (۲) ويلې شوے، ويلې، (هـ: ګلنا).

**ــــ کول** :- (۱) خوږينول (۲) ويلې کول (هـ: ګلانا).

**ــــ کېدل** :- (۱) خوږينېدل (۲) ويلې کېدل.

**ګليالی** :- (ګُ + لْ + يا + لَ + ی) د ګليالے تانيث دے.

**ګليالے** :- (ګُ + لْ + يا + لَے) (صف، مذ، ج ــ لي) ګلونو واله، هغه ټوکے وغېره چې ګلونه لري، ګُلدار (د ساده په مقابله کښې).

**ګليټ** :- (ګ + ل + ټْ) (اس، جم) ګلټ، مشهور فلز (دهات).

**ــــ ګر** :- (ــــ ګو / ګ + رْ) (پ تر، صف، مذ، ج ــ ان، مو ــ ه) د ګلټو کار کوونکے، د ګلټو څيزونه جوړوونکے.

**ګلټي** :- (ګ + ل + ټِي) (صف) ګلټو واله د ګيلټو نه جوړ شوے.

**ګليټے** :- (ګ +ل + ټَے) (صف، مذ، ج ــ ټي) د ټوپکو يو پخوانے قسم.

**ګليځ** :- (ګُ + لِي + (د) ز) (و ــ ګليز)

**ګلېدل** :- (ګَ + لَے + د+ لْ) (مص) (۱) ويلې کېدل (۲) مانده کېدل،

کمزورے کېدل.

**ګلېدل** :- (ګَ +لے + د + لْ) (مص) کړېدل ، عذاب موندل، په عذابېدل
نۀ یوازې زۀ او تۀ د جدايي په تېغ زخمي یُو
په هر لور عبدالقادره پرهار ژلي دي ګلیزي (عبدالقادر)

**ګلېدل** :- (ګُ + لَے + د + لْ) (مص) مړ کېدل ، د ډیوې یا شمع وغېره ګل کېدل.(ف : ګل شدن).

**ګلېدل** :- (ګُ + لې + د + لْ) (مص) ګل کېدل ، غوړېدل.

**ګلېدلے** :- (ګَ + لې + د + لَے) (هـ ،اس، مف ، ج ـ لي) (۱) ویلې شوے (۲) مانده شوے ، کمزورے شوے (هـ : ګلنا).

**ګلیز** :- (ګُ + لِي + ز) (صف، مذ، موـــ ه) د ګل په شان ، ګلي ، ګل سره تعلق لرونکے.

**ګلیسرین** :- (ګ + + لې + س + رِي + ن) (انګ ، اس، جم) یو قسم د شهدو په شان ماده چې د هډوکو نه تیارولے شي . خوږ خوند لري . په داروګانو کښې استعمالېږي.

**ګلېشیر** :- (ګ + لې شِي + يَ + رْ) (انګ ، اس، مذ) د واؤرې لویه توده چې د بره نه په ښکته رانښوئېږي.

**ګلېګه** :- (ګ + لې + ګَ) (اس، مو) هغه زمکه چې اړولے شوې نۀ وي.

**ګلیم** :- (ګَ +لِي +م) (ف ، اس ، مذ ، جـــ ونه) ګدړې، کند ، کمبله
تر اطلس ښۀ ده شړې
تـر ګلیم ښۀ وه بوریا (خوشحال خان)

**ګم** :- (ګَ + مْ) (انګ ، اس ، جم) سلېښ ، ګوند .

**ګم** :- (ګُ + مْ) (ف، صف) ورک ، ناپېد ، غېب ، ناموندنے.

**ـــــ راه** :- (ـــــ را + ه) (ف ، صف ، اس، مذ ، ج ـــ ان) هغه کس چې لار ترې غلطه شوې وي . په غلطه لار روان.

**ـــــ شدګي** :- (ـــــ شُ + دَ + ګِي) (ف،تر ، اس، مو) وړکېدنه ، بې درکه کېدنه

**ـــــ شده** :- (ـــــ شُ +دَ) (ف تر ،اس، مف) ورک شوے، ګوم شوے.

**ـــــ صم** :- (ـــــ صُ + مْ) (عف ، تر ، صف، مذ، موـــ ه) حېران او غلے ، چې او په فکر کښې ورک.

**ـــــ ګشته** :- (ـــــ ګَ + شْ + تَ) (ف تر) (وـــ ګم شده)
په خپل ځاے باندې قائم لکه قطب
همېشه د ګم ګشته ؤ رهنما دے (خوشحال خان)

**ـــــ نام** :- (ـــــ نا + م) (ف تر ، صف ، مذ ، موـــ ه) (۱) بې نوم ، چې نوم ئې نۀ وي معلوم ، ورک نومے (۲) هغه لیک چې د لیکونکي نوم ئې نۀ وي معلوم

**ـــــ نام خط** :- (ـــــ نا + م+ خَ + طْ) (وـــ ګمنامه چټې)

**ـــــ نام کېدل** :- ورک نومے کېدل.
چې مجنون غوندې په مینه کښې ګمنام شي
د هغـــــو پـــــه جهان وخېژي نـــامــــونه (حمید)

**ـــــ نامه چټې** :- (ـــ نا+ مَه + چي + ټَ + ی) (فپ ، تر ، اس، مو) هغه چټې چې لیکونکي په کښې خپل نوم نۀ وي لیکلے . بې نومه چټې.

**ـــــ نامي** :- (ـــــ نا + مي) (ف تر ، اس، مع) ورک نوم توب ، بې نوم والے ، داسې حالت چې چاته ئې نخښه پته نۀ وي معلومه.

**ګما** :- (ګُ + ما) (اس ، مذ ، ج ـــ ګان) یو قسم هوسے چې په بدن ئې نرے پشم وي.

**ګمارل** :- (ګُ + ما + ر + لْ) (مص) (۱) مقررول ، متعین کول ، ټاکل په کوم کار لګول (ف : ګماشتن).

چې د دین د دنیا ښې چارې په کښې وي
همېشه مې پـــه هغې چـــارې وګماره (خوشحال خان)
(۲) کار ته اماده کول.(ظفر)

**ګماشته** :- (ګُ + ما+ ش + تَ) (ف، اس، مف، ج ـ ګان) هغه سړے چې چا په کوم کار مقرر کړے وي.په کار متعین شوے سړے نمائنده ، ایجنټ ، کارنده ، د چا بل دپاره کار کوونکے.

**ـــــ توب** :- (ـــــ تو + ب)

**ـــــ ګري** :- (ـــــ ګَ + رِي) (فپ تر ، اس (۱) مذ(۲) مو) د ګماشته په حېثیت کار کونه ، کارنده ګري ، ایجنټي.

**ګماګے** :- (ګُ + ما+ ګَے) (وــ ګما)

**ګمان** :- (ګُ / ګُو+ ما + ن) (ف، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) خیال ، قیاس ، اندازه (۲) شبه ، شک (۳) وهم ، وسوسه.

**ـــــ ئېرېدل ، په زړۀ کښې** :- (۱) په زړۀ کښې خیال پېدا کېدل ، قیاس کول (۲) په زړۀ کښې شک پېدا کېدل.

**ګمان** :- (ګُ /ګو + ما + نِي) (ف، اس، فا، ج ـــ ان) (۱) شک کوونکے ، بد ګمانه (۲) ګمان کوونکے ، قیاس جنګوونکے.

**ګمبت** :- (ګُ /ګو + م + بَ + تْ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) د ګنبد بدل شکل دے . د عمارت یو خاص شکل دے چې عموماً دا په قبرونو باندې یا په جماعتونو کښې جوړولے شي . (۲) د مختلف کلو نوم هم دے (په اصل شکل کښې یعنې ''ګنبد'' هم لیکلے شي).

**ګمبش** :- (ګَ + مْ + بُ + شْ) (اس / صف ، مذ ، موـــ ه) هغه سړے چې پښې ئې لوے لوے وي.او لوے لوے قدمونه اخلي.ګامور.

**ګمبیا** :- (ګَ + مْ + بِ + یا) (اس ، مع) د یو ملک نوم دے.

**ګمبی** :- (ګَ + مْ + بَ + ی) (اس، مو) ګنبد ، ګمبته.

**ګمبېرے** :- (ګَ + مْ + بې + ګَے /ژَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) نارنج.

**ـــــ سورن** :- (ـــــ سُو + ر + نْ) (اس، مذ) هغه اس چې سور نارنجي شان رنګ لري.کرنګ.

**ګمبله** :- (ګَ + مْ + بې +لَ) (اس، مو) کمبېله یا قنبېله ،مشهوره دوائي.

**ګمده** :- (ګَ + مَ + دَ) (اس ، مو ،ج ـــ دے) د منجو جوړه شوې ترنګړې.

**ګمراه** :- (ګُ + مْ + را + (ه)) (وـــ ګم + راه)

**ګمراهي** :- (ګُ + مْ + را + هي) (ف ، اس ، م) (۱) لار خطا کېدنه (۲) بې لارې کېدنه (۲) بې دیني.

**ګمرک** :- (ګُ + مَ + رَ + کْ) (اس، مذ، ج ـ ونه / ات) کستم ، د یو ملک نه مال بل ملک ته د تنه یستلو محصول.

**ـــــ ځاے** :- (ـــــ (د) زا +ـئے) د کستم دفتر ، د کستم د محصول اخستلو دفتر ، ګمرک خانه.

**ـــــ واله** :- (ـــــ وا + لَ) د کستم دفتر.

**د ـــــ محصول** :- (د ـــــ مَ + حْ +صُو + ل) د کستم محصول ، د بهرني ملک نه مال خپل ملک ته د راوړلو محصول ، د یو ملک نه مال بل ملک ته د راننه یستلو محصول.

**ګمرکي** :- (ګُ + مْ + رَ + کِي) (ف، صف) ګمرک سره تعلق لرونکے.

**ګمله / ګملا** :- (ګَ + مْ + لَ) (اس ، مو ، ج ـــ لې) (۱) هغه خاورین لوښے چې په کښې د ګلونو وغېره بوټي لګولے شي . (۲) د ګملې په شان د ارتې خولې لوښے چې په بېت الخلا کښې کښېښودے شي.

**ګمنام** :- (ګُ + مْ + نا + م) (ف تر ، صف ، مذ ، موـــ ه) ورک نومے چې نوم ئې مشهور نۀ وي.چې څوک ئې نۀ پېژني (پېجني).

**ګمنامي** :- (ګُ + مْ + نا+ مِي) (ف تر ، اس ،مو) ورک نوم توب ، غېر

مشهورتیا ،ورکه ، هغه حالت چې چاته ئې نوم درک نۀ وي معلوم.

**ګمنځ** :- (ګُ/ګو + م + ن (د) زْ) (اس ، مو ، ج ـــ ځې) شانه ، مشهوره اله چې وېښتۀ پرې سمولے شي.ګمنز ، ګومنځ ، ګومنز ، ګمنځه ، ږمنځ.

**ګمه** :- (ګَ + مَ) (اس، مو) ورې ورې اوربشې چې په کښې مرغو (چرچڼو) ته دام غوړولے شي.

**ګمه** :- (ګَ + مَ) (اس ، مو ، ج ـــ مې) هغه خط چې په زمکه باندې راکاږي. او په دغه خط مرغو ته دام کښېږدي.

**ګمېځه** :- (ګَ + مې + (د) زَ) (اس، مو) ګنبد ، ګنبت.

**ګن** :- (ګُ + نْ) (اس ، مذ ، ج ـ ونه) غونډسکې ، ګیند ، د چوګان غونډسکې

**ګن** :- (ګَ + نْ) (انګ ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) ټوپک ، توپ (۲) تماچې ته هم اوس ګن وائي.

**ګن** :- (ګُ + نْ) (هـ ، اس ، مذ) هنر ، خوبي ، جوهر ، خصلت ، عادت.

**ګناګول** :- (ګُ + نا + ن + ګو + ل) (اس ، مذ) غرئيز پالک.

**ګنا وې** :-(ګُ/ ګو + نا + وے) (اس، مو، ج) د ګناه جمع ده، ګناهونه.

**ګناه** :- (ګُ/ ګو + نا + (ه)) (ف اس ، مذ / مو ، ج ـــ ونه) (۱) ګناه ، عصیان (۲) جرم ، خطا ، غلط کار (۳) غلطي.

ـــــ **ګار** :- (ـــ ګا + ر) (ف تر ، اس / صف ، مذ ، ج ـ ان، مو ـ ه) هغه سړے چې ګناه (خطا ، جرم وغېره) ئې کړې وي.مجرم ، جرم کوونکے ، ګناه کوونکے.(عموماً ''ګناهګار'' لیکلے شي.

**ګناهګاره** :- (ګ / ګو + نا (ه) ګا + رَ) (اس، مو ، ج ـــ رې) (۱) د ګناهګار تانیث (۲) د ګناه په بدله کښې جرم (۳) ''د ګناهګار'' (مذکر) بدل شکل چې مغیره تورو سره راځي.

**ګناهګاري** :- (ګُ/ ګو + نا (ه) + ګا ـ رِي) (اس، مو) جرم کونه ، جرم.

**ګنائي** :- (ګَ + نا + ئِي) (اس ، مو) د جرندې د اوبو ځاے.

**ګنبت** :- (ګُ/ ګو + نْ + بَ + تْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) ګول عمارت ، برج (۲) پیاله (۳) بربوکئ (۴) غوټے.

**ګن بوټ** :- (ګَ + نْ + بو + ټ) (انګ ، اس، مذ ، ج ـ ونه) هغه بېړۍ چې په کښې توپې لګېدلې وي.

**ګنترې** :- (ګ + نْ + ت + رِيْ) (و ـــ ګنتي)

**ګنتۍ** :- (ګَ + نْ + تَ + ی) (اس ، مو) يو غرئيز بوټے چې د جامو د وينځلو دپاره پکارولے شي.

**ګنتي** :- (ګ + نْ + تِي) (هـ ، اس ، مو، ج ـ انې) شمېره ، شمارنه ، (و ـــ ګنتي)

ـــــ **انبستل** :- (۱) شمارل ، شمارنه کول (۲) د پوځ یا د پولیس د سپاهیانو حاضري اخېستل.

**ګنټه** :- (ګَ + نْ + ټَ) (اس ، مو ، ج ـــ ټې) د وخت يوه پیمانه چې د شپېتو منټو برابره وي.او د ورځې او شپې د وخت څلېر ویشتمه برخه (عام طور سره ددې لفظ تلفظ ''ګېنټه'' کېږي).

ـــــ **ګر** :- (ـــ ګَ + رْ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) هغه مناره چې په کښې څلورو طرفونو ته لويې لويې ګړۍ لګېدلې وي چې د لرې نه تربېنه خلک وخت معلومولے شي.(۲) په پېښور ښهر کښې يو بازار چې په کښې يو ګنټه ګر جوړ شوے دے.

ـــــ **نیمه** :-(ـــ نِي + مَ) اندازةً د سره وخت چې د نیمې ګنټې (دېرش منټه) او دیوې ګنټې (شپېتومنټونو) په مېنځ مېنځ کښې وي.

**نیمه ـــ** :- (نِي + مَ ـــ) د ګنټې نیمه برخه ، د دېرشو منټونو هومره وخت.

**ګنټۍ** :- (ګَ + نْ + تَ + ی) (اس ، مو) جرس ، ګړیال ، هغه څيز چې په ډېلۍ سره په وهلو اوچت اواز ورکوي.(د دې تلفظ عام طور سره ''ګېنټۍ'' کولے شي).

**ګنج** :- (ګَ + ن + جْ) (اس ، مذ) د سر د وېښتو نيشتيا ، يو مرض چې د سر وېښتۀ په کښې ؤرجي (ؤرژي) او سر بې وېښتو پاتې شي.

**ګنج** :- (ګَ + ن + جْ) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) خزانه (۲) بازار ، منډۍ (۳) کچکول ، د فقیرانو د ګدا کاسه.

ـــــ **بخش** :- (ـــ بَ + خْ + ش) (ف تر ، صف، مذ، مو ـ ه) (۱) خزانه بخښونکے ، ډېر سخي (۲) د قطب الدین ایبک لقب (۳) د علي هجويري رح لقب.

ـــــ **پښتو** :- ((ـــ ج) + پُ + خْ / شْ + تو) (اس، مع) د پښتو د يو کتاب نوم دے.چې په کښې د پښتو د پخوانو شاعرانو د کلام انتخاب دے.د تنګي کلي مولوي احمد لیکلے دے.

**ګنج** :- (ګُ + ن + جْ) (اس ظر) ګوټ ، کونج ، لکه : په څلور ګنجه دنیا کښې (فارسي لغات) (اصلاً دا لفظ ''کُنج'' (کُنځ) دے.يعني په څلور کنجه دنیا کښې).

**ګنجان** :- (ګُ + ن + جا + ن) (ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ډېر ګڼ ، ډېر نژدې نژدې ، (عموماً د ابادۍ په حقله استعمالېږي.هغه ځاے چې په کښې ډېر ګڼ خلک اوسي).

ـــــ **ابادي** :- هغه ځاے چې په کښې د عام ضرورت نه ډېر زيات خلک استوګنه لري.

**ګنجائش** :- (ګُ + ن+ جا + ئِ + شْ) (ف، اس ، مذ ، ج ـ ونه) د ځائيدلو وسعت ، د ځاے اندازه چې په کښې څومره کسان يا څيزونه وغېره راتلے شي.لکه : په دې کوټه کښې د سلو کسانو ګنجائش دے.يا : په دې کاغذ کښې د نور لیک ګنجائش نشته (۲) وسعت ، طاقت.لکه : ما سره (څخه) د نور خرڅ ګنجائش نشته.

**ګنجرخې** :- (ګَ + ن + جَ + رْ + خَے) (اس، مذ ، ج ـ خې) هغه غټ لرګے چې په کښې سورے يا رخنه جوړه شوې وي او په والۀ کښې د اوبو د تقسیم دپاره لګولے شي.

**ګنجفه** :- (ګَ + ن + ج + فَ) (ف، اس، مو) د تاش د قسم لوبه ، ددې پتې غونډې وي.ټولې پتې ۹۲ او اتۀ رنګه لري.درې لوبغاړي يو ځاے لوبه کوي.

**ګنجلک** :- (ګُ + نْ + جُ + لَ + کْ) (ف ، صف) (۱) ګړونجے ګړونجے ، ګونځے ګونځے (۲) الوول ، لکه د تارونو يا وېښتو په يو بل کښې ننوتي او نښتي.

**ګنجه** :-(ګ /ګو +ن + جَ) (اس ، مو،ج ـ جې) ګړونجه ، شکن ګونجه.

**ګنجۍ** :- (ګَ+ن +ج + یَ) (اس، مو) سوېټر ، ګرم بنيان ، وړين جاکټ.

**ګنجۍ** :- (ګَ + ن + جَ + ی) (صف ، مو) (۱) د ګنجے تانیث دے.هغه ښځه يا جينۍ چې په سر ئې وېښتۀ نۀ ي.يا ډېر کم وي.(۲) مشهور مردار خور مارغۀ چې د ټېوس نه لوے وي.او په مرۍ او سر ئې ښې نۀ وي ، کرګس.

د ـــــ **وادۀ** :- (د ـــ وا + د) (پ تر ، اس ، مو) بې اعتباره خبره.

**ګنجۍ** :- (ګُ / ګُو + ن+جَ + ی) (هـ ، اس ، مو) ماشوه ، د تار يا د بوڼ يا د سپڼسو وغېره نغښتے وړوکے بنډل ، ګونجۍ.

**ګنجے** :- (ګَ + ن + جَے) (اس، مذ ، ج ـ جي) (۱) هغه سړے (يا هلک) چې په سر ئې وېښتۀ نۀ وي يا ډېر کم وي (۲) د جوارو وږے چې دانې پرې ډېرې لږې وي.

**ګنجې** :- (ګُ/ ګو + ن + جې) (۱) د ''ګنجه'' جمع ده (۲) د ''ګنجه'' بدل

شکل دے چې مغیره تورو سره راځي.

ـــــ **گنجې** :- (ـــــ گُ/گو+ن+جې) گرونجے گرونجے ، شکن شکن ، مات مات ، شکن درشکن ، غوټې غوټې.

**گنجے** :- (گُ/گو+ن+جَے) (و ـــ گونج)

**گنجیفه** :- (گَ+ن+جي+فَ) (اس، مو) د تاش په شان د یوې لوبې نوم دے ـ ددې پتې (پاڼې) د روپۍ هومره ورې ورې او غونډې وي. گنجفه.

**گنجینه** :- (گَ+ن+جي+نَ) (ف ، اس ، مو ، ج ـــ نې) (۱) خزانه ، ښخه خزانه ، دفینه (۲) مېگزین.

**گنځپه** :- (گَ+ن+(د)زْ+پَ) (اس، مو، ج ـــ پې) (۱) یو قسم لومبړه ده. (۲) ځینې خلک بلونګړي ته هم وائي. بلانګورے، ګوډه بلي.

**گنځه** :- (گ+ن+(د)زَ) (اس، مو) قچه گوته ، کچه گوته ، وړه گوته

**گنچه** :- (گَ+نَ+چَ) (اس، مو) یو قسم شینکے دے ، کنوچه.

**گند** :- (گ+نْ+د) (و ـــ کند)

ـــــ **پوښ** :- (ـــــ پو+ خ/ش) (و ـــ کند پوش)

**گند** :- (گَ+نْ+د) (ف ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) ناپاکي ، غلاظت ، غل ، ښځله ، خزله (۲) گنده او بې کاره ځیزونه (۳) جنگ جگړه ، شخړه ، لانجه.

ـــــ **پاکول** :- (۱) پلیدي لرې کول (۲) جگړه ختمول، جگړه فېصله کول.

**گند** :- (گ/گې+نْ+د) (اس، مذ) گیندہ ، گنډ.

**گند** :- (گً+نْ+د) (و ـــ گونډې)

**گند** :- (گُ+نْ+دَ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) ډله ، ټولے ، جماعت (۲) پره ، طرف ، پره جنبه.

ـــــ **باز** :- (ـــــ با+ز) (پ تر ، اس ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) د پرې حمایت کوونکے ، د خپلې ډلې مرسته کوونکے ، فرقه پرست.

ـــــ **پرستي** :- فرقه پرستي ، د ټولې یا دجماعت طرفداري.

**گنداو** :- (گَ+نْ+دا+و) (اس، مذ) د گنده اوبو د اودرېدلو ځاے ، گنده ولاړې اوبۀ ، ډنډ (۲) په مهمندو کښې یوه علاقه ، گنداب.

**گندرے** :- (گ+نْ+د+رَے) (اس، مذ) یو غرئیز بوټے دے چې ډېر بدبویه وي. گنده ښبروزه د دې بوټي نه اوباسلے شي. گنده نار هم ورته وائي.

**گندریگے** :- (گَ+نْ+د+رے+گَے) (اس، مذ ، ج ـــ گي) خوراک د گېډې نه خولې ته راتلل. ډېر تنگول ، تر پوزې راوستل ، خداے دې خوار کړه. گندریگے دې کړو راله.

**گندکه** :- (گَ+نْ+دَ+ک) (اس، مو) یو قسم جواري ده چې په دریو دانو کولے شي. (ف: سه خر).

**گندکي** :- (گَ+نْ+دَ+کِي) (اس، ج) مویز چې خراب او تراوۀ شي ، گډ ودے هم ورته وائي.

**گندگي** :- (گَ+نْ+دَ+گي) (ف تر ، اس) ناپاکي ، غلاظت ، غُل

ـــــ **خور** :- (ـــــ خو+ر) گندگي خوړونکے ، غُل خور

جاهلان لکه قارغۀ گندگي خوارۀ دي

شنو طوطیانو به د رژۀ مهر په قند کړ (خوشحال خان)

ـــــ **خورول** :- مجازاً فساد جوړول ، شر پیدا کول ، جگړه پیدا کول، د شر فساد خبره خورول.

**گندنا** :- (گَ+نْ+د+نا) (اس، مو) د اوږې په شان یوه ترکاري ، اُوږه.

**گنده** :- (گَ+نْ+دَ) (اس، مو) زړه خرقه ، بوسیده خرقه.

**گنده** :- (گُ+نْ+د) (اس، مو) غله ، کومه چې نائي له فصل په فصل یا کال په کال ورکولے شي. فصلانه.

**گنده** :- (گَ+نْ+دَ) (اس، مو) یوقسم وابنۀ، چې د څاروو خوراک دے.

**گنده** :- (گَ+نْ+دَ) (ف، صف) (۱) ناپاکه ، غلاظت یا پلیتۍ سره لړلے ، په ناپاکه ځیز ککړ (۲) خراب ، بد اخلاقه ، شرپسنده ، بدفطرته ، جنگیالے ، فسادي (۳) خیرن خیچن اوسپډونکے. سخه.

ـــــ **بروزه** :- (ـــــ بے+رو+زَ) (ف تر ، اس، مو) د چیړ د ونې گوند

ـــــ **بغل** :- (ـــــ بَ+غَ+لْ) (ف تر ، صف، اس) هغه چې د ترخونو نه ئې بوي ځي

ـــــ **خبره** :- (ـــــ خَ+ب+رَ) (اس، مو، ج ـــ رې) (۱) خرابه خبره ، کنځل ، فحش خبره ، د بې حیایۍ خبره (۲) خراب کار، فحش کار ، د بې حیایۍ کار.

ـــــ **دهن** :- (ـــــ دَ+ه+نْ) (ف تر ، صف، مذ ، مو ـــ ه) سخه خولې ، هغه چې د خولې نه ئې خراب بوي ځي.

ـــــ **ژبه** :- (ـــــ ژ+بَ)

ـــــ **جبه** :- (ـــ ج+بَ) (اس، مو) خرابه خولۀ ، خرابې خبرې ، کنځل ، فحش خبرې.

ـــــ **کول** :- (۱) گند یا پلیتي چا پورې مښل (۲) تور پورې کول ، بدنامول (۳) رسوا کول ، ذلیل کول.

ـــــ **لبوه** :- (ـــــ لے+و) (پ تر ، اس، مذ، ج ـــ وان) سُور ، بدځناور ، خنزیر.

ـــــ **نل** :- (ـــــ نَ+لْ) یو بوټے چې د گنې په شان وي. خو رس (شربت) نۀ لري. نل ، شرغشے.

ـــــ **نار** :- (ـــــ نا+ر) (و ـــ گندرَے)

**گندهارا** :- (گَ+نْ+دا (ها) را) (اس، مع) د پښبور د ودای پخوانے نوم.

**گندي** :- (گُ+نْ+دي) (و ـــ گونډي)

**گندي** :- (گُ+نْ+دي) (اس ، مو) (۱) ډله بازي ، پره ، دخپلې پرې طرفداري کول (۲) سیالي کول ، برابرے کول.

**گنډ** :- (گَ+نْ+ډ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) سلائي ، دگنډلو طور یاگنډلې شوې برخه (۲) گنډلو سره یوځاے کونه ، گنډون.

**گنډ** :- (گَ+نْ+ډ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) د مېچنې هغه جې/ ژۍ کومه چې چارچاپېره په خټو وغېره جوړه شوې وي.

**گنډا / گنډه** :- (گَ+نْ+ډَ) (اس، مو ، ج ـــ ډې) د څلورو شمېر، څلور کنجکې یوه گنډه وي.

**گنډاپور** :- (گَ+نْ+ډا+پو+ر) (اس، مع) د پښتنو سېدانو یوه قبیله ده. د حضرت گېسو دراز له اولاد دي. حضرت گېسو دراز چې د عراق نه د سلیمان غر علاقې ته راغے. نو دریو پښتنو قبیلو سردارانو ورله خپلې لونړه ورکړې. د شیرانۍ ښځې د مستوریانې ، کاکړې ښځې نه مشوانې او د کرلاڼې تېر نه وردک او هنې پیدا شول.

**گنډکپ** :- (گَ+نْ+ډ+کَ+پْ) (هـ ، اس، مذ ، ج ـــ ان) غوټه پرېکوونکے ، جیب وهونکے ، جیب تراش ، گنځ کپ (اصلاً دا د هندکو لفظ دے. چې د گنډ (غوټه) او کپ (پرېکوونکے) نه جوړ شوے دے.

**گنډل** :- (گَ+نْ+ډ+لْ) (مص) سلائي کول ، جامه وغېره په ستن او تار پیوند کول. (اُر: سینا) (ف: دوختن).

**خولۀ** ـــــ :- (۱) زبان بندي کول ، د خبرو نه منع کول (۲) چپ پاتې کېدل ، خبره نۀ کول.

**گنډلو** :- (گَ+نْ+ډ+لو) د "گنډل" بدل شکل چې د مغیره تورو سره راځي.

**د ـــــ ستن** :- (د ـــــ س+ت+نْ) (پ تر ، اس، مو ، ج ـــ نې) هغه وړه شان د اوسپنې وغېره نه جوړه شوې اله چې د جامو، بوجیو وغېره د گنډلو دپاره پکارولے شي. سوزن.

**د ـــ مشين** :- (د ـــ مَ + شي + ن)

**د ـــ ماشين** :- (د ــــ ما + شي + ن) (پ انگ ، تر، اس، مذ ، ج ـ ونه / ان) هغه مشين (اله) چې جامې وغېره پرې ګنډلے شي.د سلايۍ مشين.

**ګنډلے** :- (ګَ + نْ + ډ + لَے) (اس، مذ) يو قسم بوټے دے بدبويه ، نار ئې په مېنځ ډډ وي ، زېړ ګل کوي.(و ـــ ګندنار)

**ګنډلے** :- (ګَ + نْ + ډَ + لَے) (و ــــ ګنډولے)

**ګنډنه** :- (ګَ + نْ + ډ + ن) (حمص) ګنډ ، د ګنډکار ، يو ځاے کونه ، (ار : سلائي).

**ګنډنے** :- (ګَ + نْ + ډ + نَے) (اس، مذ ، ج ـــ نې) هغه خاص قسم قميص چې د کمر (مله) نه لاندې ډېر پلېټونه (چين) لري.

**ګنډولے** :- (ګَ + نْ + ډو + لَے) (اس، مذ ، ج ـــ لي) هغه لنډ قميص چې لستوني نۀ لري.

**ګنډون** :- (ګَ + نْ + ډُو + نْ) (و ـــ ګنډ)

واړه ستا پـــه حکم کېږي
که ګنډون دے که شلوون (خوشحال خان)

**ګنډونکے** :- (ګَ + نْ + ډو + ن + کَے) (و ـــ ګنډونے)

**ګنډونے** :- (ګَ + نْ + ډُو + نَے) (اس، فا ، ج ـــ نې) ګنډلو واله ، درزي ، خياط.

**ګنډه** :- (ګَ + نْ + ډَ) (اس، مو ، ج ــــ ډې) (۱) د لرګي غوټه ، (۲) مطلق غوټه ، کپړه (۳) ګټلۍ ، په کپړه وغېره کښې ترلے شوے څيز يا سامان.

دا همــــه واړه رهـــزن د طريقـــت دي
خپلــې خــولې ســره وړې پــردۍ ګنــډې

**ګنډه** :- (ګَ + نْ + ډَ) (اس، مو، ج ــــ ډې) بډه ، د پرتو غاښ اچولو ځاے ، نېفه

**ګنډه تل** :- (ګَ + نْ + ډَ + تَ + لْ) (و ــــ ګنډېرے)

**ګنډه ځر** :- (ګَ + نْ + ډَ + (ت) سَ + رْ) (پ ت، اس، مذ) ګنډېرے

**ګنډې** :- (ګَ + نْ + ډې) دګنډه جمع ده.

**ګنډۍ** :- (ګ + نْ + ډَ + ی) (اس، مو) د نمدې يا د مالوچو نه جوړ شوے جاکټ، کوچۍ.

**ګنډۍ** :- (ګُ + نْ + ډَ +) (هـ ، اس، مو) (۱) د تنۍ کاج ، د مزي هغه حلقه چې د نچوني قسم غوټه په کښې ننه باسي ، او د تنۍ او کاج کار ورکوي (هـ : ګُهنډي) (۲) بوس.

**ګنډياره** :- (ګَ + نْ + ډ + يا + رَ) (اس، مو) جودر ، مشهور بوټے چې د غنمو يا د اوربشو په فصل کښې پيدا کېږي.

**ګنډياله** :- (ګَ + نْ + ډ + يا + لَ) (اس، مو ، ج ـــ لې) يو قسم ازغن/ اغزن بوټے.

**ګنډېر/ګنډهېر** :- (ګَ + نْ + ډے + ر) (اس صف) (۱) ډېر زيات تريخ (۲) مجازاً وژونکي زهرو دپاره استعمالېږي. "زهر" سره يو ځاے هم راځي. يعني زهر ګنډېر. مثل: لړ خوره تل خوره ډېر خوره ګنډېر خوره.

**ـــ پاڼې** :- (ـــ پا + ن + ړے + ن) (اس، مذ) دا يو قسم دارو چې زهر دي. ګنډېر بوټے.

**ـــ کول** :- (۱) ګنډېر يا زهر ګڼل ، په خوراک يا استعمال کښې نۀ راوستل (۲) مجبوراً خوړل ، بغېر د خواهش نه څۀ څيز خوړل.

**ـــ کېدل** :- (۱) لکه د زهرو وژونکے يا تريخ لګېدل (۲) زهر کېدل.

**زهر ـــ** :- (زَ + هـ + رْ ـــ) (پ تر ، صف) (۱) ډېر زيات تريخ (۲) د زهرو په شان اثر کوونکے.

**زهر ـــ کول** :- مجبوراً څۀ څيز خوړل، د ناخوالۍ نه خوړل ، د طبيعت نه خلاف څۀ څيز خوړل.

**ګنډېر مرۍ** :- (ګَ + نْ + ډے + ر + مَ + رَ + ی) (پ تر، اس، مو) زهر مهره ، يو قسم جرۍ چې د زهرو د اثر د لرې کولو دپاره د مار خوړلي په زخم باندې ږدي.

**ګنډېرن** :- (ګَ + نْ + ډې + ر + نْ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) زهرناک، د زهرو ډک ، زهر لرونکے.

**ګنډېرۍ /ګنډهېرۍ** :- (ګَ + نْ + ډې + رَ + ی) (اس، مو) د سپين کړي ګني وړې وړې ټکړې.

**ګنډېرے** :- (ګَ + نْ + ډې + رے) (اس، مذ ، ج ـــ ري) (۱) مشهور بوټے دے چې عموماً په غرونو کښې کېږي. سُور ګل کوي او که څاروے ئې وخوري نو مري ترې. د دې واړۀ بوټي د خشاک په طور پکارولے شي (۲) يو قسم شين بوټے چې اکثر په شفتلو کښې کېږي او څاروو ته نقصان رسوي.

**ګنډېل** :- (ګَ + نْ + ډې + لْ) (اس، مذ) د مست يا قوتناک اوښ دواړه زنګنونه د مرۍ سره د ترلو يوه خاصه طريقه.

**ګنډېوه** :- (ګَ + نْ + ډې + وَ) (اس، مو ، ج ـــ ې) خاورين کنډول

**ګنر** :- (ګَ + نَ + رْ) (اس، مذ) زوړ ، کمزورے ، د کاره وتے غوياے

**ګنز** :- (ګُ + نْ + ز) (و ـــ ګمنځ)

**ګنزه** :- (ګُ/ګُو + نْ + زَ) (اس، مو ، ج ـــ زې) ګړونجه ، ګونجه.

**ګنس** :- (ګَ + ن + سْ) (صف، مذ ، مو ـــ ه) دهشت زده ، وېرې اخستے ، حېران ، ګنس.

**ګنس** :- (ګَ + نْ + س) (اس، مذ ، مو ـــ ه) بېهوشي ، هغه بېهوشي کومه چې په سر باندې ګذار خوړلو سره پيدا شي ، ګنګس.

**ګنکي** :- (ګَ + نْ + کيي) (اس، مو) بېهوشي ، بې سدي ، خصوصاً په سر باندې ګذار خوړلو په وجه بېهوشي.

**ګنګ** :- (ګَ + ن + ګْ) (اس، مذ) (۱) بېهوشه ، بې سُده شوے . بې سُده (۲) ګنګس ، حواس باخته ، اوتر.

**ګنګ** :- (ګَ + ن + ګْ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) هغه مېلمستيا چې د کوژدنې په موقع ورکولے شي.

**ګنګ** :- (ګَ + ن + ګْ) (اس، ظر) نمرخاتۀ ، نور خاتۀ ، مشرق (ظفر).

**ګنګ** :- (ګُ + نْ + ګ) (ف صف ، مذ ، مو ـــ ه) ګونګے ، چې خبرې نۀ کوي ، چپ ، غلے.

**ګنګا** :- (ګَ + ن + ګا) (اس، مع) په بهارت (هندوستان) کښې د يو مشهور سيند نوم چې هندوان ئې مقدس ګڼي.

**ګنګخړ** :- (ګَ + ن + ګَ + خ + ړْ) (اس، مذ ، ج ـــ ړې) هغه لرګي خشاک وغېره چې په سېلاب کښې راځي. نيز وړې ګنخړ.

که اباسين راغلے نۀ وے
په ګنګخړو کښې به چا مونډل ټيکونه (ټپه)

**ګنګرو** :- (ګُ + ن + ګْ + رُو) (هـ ، اس ، مو ، ج ـــ کان) د تانبې نه جوړ غونډ شان څيز چې په کښې ورړوکے کاڼے يا هډوکے ګېروي او په خوزيدو د کړنګ کړنګ اواز وباسي.

**ګنګړ** :- (ګَ + ن + ګ + ړْ) (و ـــ کنګړ)

**ګنګړو** :- (ګُ + ن + ګ + ړو) (۱) د "ګنګره" جمع ده . (۲) د ګنګره بدل شکل چې د مغيره تورو سره راځي.

**په ـــ اخته کېدل** :- په سخت کار مشقت کښې راګېرېدل ، په مصيبت اوړېدل ، په بلا اوړېدل.

**ګنګړه** :- (ګ + ن + ګ + رَ) (اس ، مو ، ج ـــ ړې) مشقت ، سخت کار ، د

تکلیف کار۔

**ګنګړي** :- (ګُ + ن + ګ + ړي) (اس، مو) (۱) یشولې شوې غله ، لکه جوار، غنم، متیر وغیره (۲) عام طورسره یشولې شوې چنې۔

**په خولهٔ کښې ــــ بودل** :- مجازاً چپ پاتې کېدل ، جواب نهٔ ورکول۔ لکه : جواب ولې نهٔ راکوې ، په خولهٔ کښې دې ګنګړي خو نهٔ دي۔

**ګنګس** :- (ګ + ن + ګ + سْ) (صف، مذ، مو ــــ ه) حواس باخته ، چې مازغهٔ یا عقل فکر ئې کار نهٔ کوي۔اوتر ، مخبوط الحواس۔

**ــــ توب** :- (ــــ تو + ب)

**ــــ تیا** :- (ــــ ت + یا) ګنګس والے سر درنېدل ، د مغزو (مزغو) کار نهٔ کونه ، اوترتوب۔

**ګنګسه** :- (ګَ + ن + ګ + سَ) (و ــ ګنګوسه)

**ګنګلو** :- (ګُ + ن + ګْ + لُو) (اس، مذ) ټیپر ، شلغم۔

**ګنګو** :- (ګَ + ن + ګو) (اس، جم) (۱) زعفران ،(۲) زیړ۔

تاچې رنګ د ګلو واخست زهٔ پوهېږم

زرغونه به په څهره زما ګنګو کړې (رحمان بابا)

**ګنګورے** :- (ګَ + ن + ګو + رَے) (اس، مذ ، ج ــــ ري) د انګورو خوشه ، ډنډورے۔

**ګنګوړه** :- (ګَ + ن + ګو + ړَ) (صف، مو) ژبه نښتل ، ترتړې ژبه ، د کومې صدمې یا د مرض له کبله د ژبې نښتنه ، ګانګوړه۔

**ګنګ و سنګ** :- (ګُو + ن + ګو + سُ + ن + ګ) (صف، مذ، مو ــــ ه) (۱) چپ او حېران ، صم بکم۔(۲) هغه چې ببخې غږ نهٔ کوي یا جواب نهٔ ورکوي۔

**ګنګوسه** :- (ګَ + ن + ګو + سَ) (اس ، مو، ج ــــ ې) افواه ، سرګوئي، پټ غږ۔

**ګنګوسے** :- (ګَ + ن + ګو + سَے) (اس، مذ، ج ــ سې) (و ــ ګنګوسه)

**ګنګومابنام** :- (ګَ + ن + ګو + ما + خا / شا + م) (اس ظر) مابنام ته نژدې وخت چې نمر/ نور ډوب شي او لاسمه تیارهٔ شوې نهٔ وي۔

**ګنګے** :- (ګَ + ن + ګے) (صف، مذ، مو ــــ ې) بیهوشه ، بې سده ، خصوصاً چې سر بندې ګذار خوړلو په وجه بې سده وي۔

**ګننے** :-(ګَ +نَ + نَے) (اس ، مذ ، مو ــ ې) وړوکے پې۔ رودونکے ګډورے۔

**ګنه** :- (ګ + نَ) (اس ، مو ، ج ــ نې) نشان، نخښه ، علامت ، قرینه۔

**ګنه** :- (ګَ + نَ) (اس، مو ، ج ــ نې) بېړۍ۔

**ګنه درب** :- (ګ + نَ + د + رَ + بْ) (و ــــ ګنه درو)

**ګنه درو** :- (ګ + نَ + د + رَو) (اس، مذ) (۱) د رشقې یا د شولو اول لَو ، (۲) قوت چې ایله ایله پوخ شوے وي۔

**ګنه** :- (ګ / ګُو + نَ) (ف، اس، مو) د ګناه مخفف دے (عام طور سره مؤنث ګڼلے شي۔خو ځینې خلک ئې مذکر هم استعمالوي)۔

**ــــ ګار** :-(ــــ ګا+ر) ګنه یا ګناه کوونکے ، مجرم ، عاصي، ګنهګار۔

**ګنهګاربدل** :- (ګُ / ګو + نَ + ګا+ رے + د + لْ) (مص) داسې کار کول چې سړے پرې مجرم وګرځي ، بد کار کول ، د شریعت نه / څخه مخالف کار کول۔

**ګني** :- (ګ + ني) (حرف) د شرط توری دے۔د "کني" په ځاے استعمالېږي او "کني" اصلاً "که نه وي" مخفف دے۔ لکه: توبه وباسه ګني ډبوم دې۔

**ګنې** :- (ګ + نې) (و ــ ګني)

**ګنۍ** :- (ګَ + نَ + ی) (اس، مو) د سرو مچو ګګ۔

**ګنۍ** :- (ګَ + نَ + ی) (لاحقه) د پښتو لاحقه ده۔اسمونو سره لګي او د خپلولۍ معنې ورکوي۔لکه :پلارګنۍ، پلار د لورې خپلوان۔

**ګنے** :- (ګَ +نَے) (اس، مذ ، ج ــــ نې) نیشکر، (اُر: ګنا)

**ګڼ** :- (ګ + ڼْ) (اس صوت) د پوزې اواز ، په پوزه کښې د خبرې اواز

**ــــ ګڼ** :- (ــــ ګ + ڼ) (و ــــ ګڼا)

**ــــ ګڼ کول** :- په پوزه کښې د خبرو اواز راتلل ، غونغون کېدل۔

**ګڼ** :- (ګَ + ڼ) (اس، مذ، ج ــــ ونه) ګورم ، ګووار ، پاه۔

**ګڼ** :- (ګ + ڼْ) (صف، مذ ،مو ــ ه) (۱) ډېر ،په شمېر کښې ډېر لکه : ګڼ خلک (۲) په شمېر کښې ډېر څیزونه په لړ ځاے کښې۔لکه :ګڼې ونې۔

**ګڼا** :- (ګ + ڼا) (اس، صوت) د ګڼ ګڼ (په پوزه کښې د خبرې) مسلسل اواز۔

**ګڼ بوټ** :- (ګَ + ڼ + بو + ټْ) (و ــــ ګڼ بوت)

**ګڼس** :- (ګَ + ڼ + سْ) (صف ، مذ ، مو ــ ه) دهشت وهلے ، وېرې اخستے ، ګنس۔

**ــــ وګیچ** :- (ــــ (سو) ګیې + چ) (ف تر ، صف) حېران، دهشت زده

**ګڼ کپ** :- (ګَ + ڼْ + کَ + پْ) (اس، مذ ، ج ــ ان) غوټه پرې کوونکے ، جبب پرېکوونکے ، جبب تراش۔(اصلاً دا لفظ د هندی ګنډ کپ دے)

**ګڼل** :- (ګَ + ڼ + لْ) (مص) (۱) خیال کول ، قیاس کول (۲) شمېرل شمار کول ، شاملول۔

**ګڼنه** :- (ګَ +ڼ + نَ) (حمص) خیال کونه ، قیاس کونه، شمېرنه (څهٔ)۔

**ګڼنے** :- (ګَ +ڼْ +نَے) (اس ، مذ ، ج ــ نې) رحم ، بچه داني۔

**ګڼول** :- (ګ + نَ + ؤ + لْ) (مص) (۱) په خبرو کول ، خبرې د چا د خولې نه ابستل (۲) رائې یا راز د چا معلومول۔

**ګڼونه** :- (ګ + ڼ + ؤ + نَ) (حمص) (۱) په خبرو کؤنه ، د چا د خولې نه خبرې ابستنه (۲) د چا راز یا حال یا رائې معلومونه (په خبرو خبرو کښې)۔

**ګڼونه** :- (ګَ + ڼَ + ؤ + نَ) (حمص) زیاتونه ، ډېرونه ، په شمار کښې زیاتونه۔

**ګڼه** :- (ګَ + ڼ + ن) (اس، مو ، ج ــ ړې) (۱) د "ګڼ" تانیث دے۔(۲) د ډېرو خلکو جمع ۔

**ګڼه ګوڼه** :- (ګَ + ڼ + ن + ګو + ڼ + ه) (اس، مو ، ج ــ ې ــ ې) د ډېرو خلکو په یو ځاے کښې جمع ، زیات خلک۔

**ګڼه** :- (ګَ + ڼ + ه) (حرف) که نهٔ ئې نو ، په بل صورت کښې ، ګني

مګر خود په خپله خداے د چا طبیب شي

ګڼه نشته په جهان کښې بل طبیب (رحمان بابا)

**ګڼه** :- (ګَ + ڼ + ن) (فعل) د ګڼل مصدر نه استمراري امر۔

**ګڼهار** :- (ګ + ڼ + ها + ر) (اس صوت) د ګڼ ګڼ مسلسل اواز، ګڼا۔

**ګڼهار** :- (ګُ + ڼَ + ها + ر) (اس ، صوت) ګړونجې ، انګازه ، ګونج ، کړنګار۔

محبت هسې څپېړه په مخ راکړه

چې په سر کښې د حسین ګڼهار ؤخت (حسین)

**ګڼه بوز** :- (ګ + ڼ + ن + بو + زِ) (صف، مذ، مو ــ ه) پوخ او زړهٔ ور سړے ، پخته کار او مضبوط سړے۔

**ګڼیے** :- (ګ + ن + ړَے) (اس صوت) ګڼا ، د ګڼ ګڼ مسلسل اواز، غونړے۔

**ګڼیے** :- (ګ + ن + ړے) (حرف) شائد ، ګویا که ، ګني ، جوړې ، لکه : ګڼیے پښتون نهٔ ئې۔

**ګڼېدل** :- (ګ +ڼ + ے +د +لْ) (مص) (۱) ګڼ ګڼ کول ، په پوزه کښې خبرې کول (۲) داسې ورو ورو خبرې کول چې بل پرې نهٔ پوهېږي۔

**ګڼېدل** :- (ګَ + ڼ + ې + د + لْ) زیاتېدل ، په شمېر کښې زیاتېدنه۔

**ګڼېش** :- (ګَ + ڼ + ے + ش) (صف ، مذ ، مو ــ ه) نرے نروچکے او کمزورے سړے ، ضعیف او کمزورے سړے۔

**ګو** :- (ګو) (حرف) د قسم توری دے۔د "ګواه دے" مخفف دے۔لکه :

خداے گو، خداے مې گواه دے. خود ''قسم دے'' په معنیٰ کښې استعمالېږي.لکه: قراٰن گو، په قراٰن مې قسم دے.

**گواتل** :- (گ + وا + ت + لْ) (مص) زخمي کول، ژوبلول، جوبلول.

**گواتلے** :- (گ + وا + ت + لَے) (اس، مف، ج ـ لِي) زخمي شوے، ژوبل شوے، جوبل شوے.

**گواتنه** :- (گ +وا + ت + نَ) (حمص) زخمي کونه، ژوبلونه، جوبلونه.

**گواتونکے** :- (گ + وا + تُو + ن + کَے) (اس، فا، ج ـ کي) زخمي کوونکے، جوبلوونکے، ژوبلوونکے.

**گواتے** :- (گُ + وا + تَے) (اس، مذ، ج ـــ تې) گونگے، (مشهور مارغهٔ) بوم، چغد کونګ.

**گواتې مالا** :- (گ + وا + تِې + ما + لا) (اس، مع) د يو ملک نوم.

**گوادر** :- (گَ + وا + دَ + رْ) (اس، مع) د يوې علاقې او بندرگاه نوم.

**گوار** :-(گَ + وا+ر) (اس، مذ،موـــه) گبر، اتش پرست، اورنمانځے.

**گوار** :- (گَ + وا + ر) (هـ، صف، جـــ ان) جټ، ناپوهه، ساده، بانډيځے (هـ: گنوار).

**گوار** :- (گَ + وا + ر) (لاحقه) د فارسي لاحقه ده. اصلاً د ''گوارا'' مخفف دے. عموماً ''خوش'' سره راځي، يعني خوشگوار، يعني ښهٔ گوارليدونکے، ښهٔ برداشت کېدونکے.

**گوار** :- (گ / گُو + وا + ر) (اس، مو، جـــ رې) د غوا غوئيانو، گډو، بيزو وغېره ځاروو گله. کڼ ځاروي چې په يو ځاے راجمع شي او بيا ئې ځرونکے بهر مېدانونو ته څرند دپاره بوځي.

**گوارچنه** :- (گُو + وا + ر + چ + ڼ + هَ) (اس، مو، جـــ ې) د ''گوارچي'' تانيث دے.گوار ځروونکې ښځه.

**گوارچي** :- (گُ + وا + ر + چِي) (اس، مذ، جـ ان) هغه سړے چې د کلي غوا، سخي وغېره جمع کړي، باهر ته ئې د ځر دپاره بيائي او بيا ئې کلي ته راولي.د گوار ځروونکے.

**گواره** :- (گَ + وا + رَ) (اس، مو، جـــ رې) طريقه، ډول، شان.

**گواري** :- (گُ + وا + رِي) (وـــ گوارچي)

**گوارۍ** :- (گَ + وا + رَ + ی) (اس، مو) د منجو جوړه شوې د خاورو وړلو بوره.

**گواښ** :- (گ + وا + خ / ش )(اس، مذ) (۱) جنګ جګړې نه بېرته کونه (۲) دريم گړتوب، ثالثي، منصفي (۳) زورنه، تادېب، هدايت.

**ـــ کول** :- غصه کول، گوښېدل.

**ـــ گرندے** :- (ـــ گ + ر + ن + دَے) (پ تر ،اس، مذ، جـ دي) د دوو کسانو يا ډلو تر مېنځه روغه جوړه کوونکے، دريم گړے، ثالث.

توري ستر گې دې گواښ گرندي
بـــانډه ستـــا وائي چې مـــار مـــار (خوشحال خان)

**ـــ گېښن** :- (ـــ گې + خ / ش) (پ تر، اس، مذ) د جنګ جګړې نه بچ کونه ،خلاصے (گېښن دلته د گواښ د تاکيد دپاره راغلے دے)

که ئې سل خوارهٔ د حسن په گواښ گېښن شي
دم قـــدم بـــه لکـــه بند دې گني زېښن شي (حميد)

**ـــ لرل** :- خواهش لرل، زړهٔ کېدل، اماده کېدل.

**گواښرندے** :- (گ + وا+ خ/ ش + ر + نغ + دَے) (وـــ گواښے).

**گواښل** :- (گ + وا+ خ/ ش + لْ) (مص) (۱) د جنګ جګړې نه منع کول. په مېنځ کښې صلح پيدا کول (۲) زورنه ورکول، هدايت کول، تنبيه يا تاديب کول (۳) حمله کول، يلغار کول (۴) جنګ جګړې دپاره خپړې لگول، لاس اچول، کشمکش کول (۵) دخل ورکول.

**گواښندوئے** :- (گ + وا + خ/ ش + نْ + دو + ئے) (وـ گواښ گرندے)

**گواښونه** :- (گ+ وا + خَ +/ شَ + نَ) (حمص) د جنګ نه بېرته کونه، جنګ جګړې نه منع کونه يا خلاصونه.

**گواښونکے** :- (گ + وا + خُو/ شُ + ن + کَے) (اس، فا، ج ـــ کي) د جنګ نه بېرته کوونکے.

**گواښے** :- (گ + وا + خے / شے) (اس، مذ، ج ـ ښي) درېمگړے، صلح کوونکے، گواښرندے، خلاصے کوونکے.

**گوښېدل** :- (گ + وا + خې/ شې + د + لْ) (مص) (۱) تهديد کېدل، تنبيه ورکولے کېدل، زورنه موندل (۲) اماده کېدل، خواهش لرل، زړهٔ کېدل، د څو ورځو نه گواښېږم چې يو ناول وليکم (۳) جنګ جګړې يا مقابلې ته اماده کېدل.

**گواښېدنه** :- (گ + وا + خې/ شې + د + نَ) (حمص) خواهش لرنه، زړهٔ کېدنه، اماده کېدنه.

**گواکې** :- (گ + وا + کَے) (حرف) گوا که، گويا چې، گويا که.

**گوال** :- (گ + وا + ل) (اس، مذ، ج ـ ونه) د غړهٔ په اړخ کښې ژور/ جور ځاے، نشيب داره زمکه.

**گوال** :- (گ + وا + ل) (صف، مذ، موـــ ه) ساتندوئے.

**گوانجه** :- (گَ + وا + ن + جَ) (اس، مو، ج ـ جې) ماله، کپړ (هغه تخته چې قلبې پسې وتړي او پټے پرې هواروي)

**گواندے** :- (گ + وا + ن + دے) (حرف) گويا که، گوياچې، گواکه.

**گوانډ** :- (گ/ گَ + وا + ن + ډ) (هـ، اس، ظر) همسايه توب، يو بل سره جخت کورونه (يا ځايونه) لرل، گاونډ.

**چم** ـــ :- (چَ + مْ ـــ) (س، ظر) محلت او گوانډي توب، کورمحلت، د خپل چم (محلت) او (گاونډي توب حقوق).

**گوانډڼه** :- (گ / گَ + وا + ن + ډ + ڼ + ه) (اس، مو، ج ـــ ې) د گوانډي تانيث دے.په گاونډ کښې اوسېدونکې ښځه.

**گوانډي** :- (گ / گَ + وا + ن + ډِي) (اس، مذ، جـــ ان) همسايه، خو په خوا کښې کور لرونکے، گاونډي.

**ـــ توب** :- گاونډ گيري، همسايه توب، يو بل سره خوا په خوا د اوسېدونې حقوق.

**گوانډۍ** :- (گ / گَ + وا + ن + ډَ + ی) (وـــ گوانډڼه)

**گواه** :- (گَ +وا+(ه)) (ف،اس،مذ،جـ ان) شاهد، ثبوت ورکوونکے.

**ـــ اړول** :- گواه د گواهي نه منع کول، گواه په بدل بيان رضا کول.

**ـــ رويت** :- (ـــ رُو + يَ + تْ) (ف تر، اس) هغه گواه چې کومه واقعه ئې په خپلو ستر گو ليدلې وي.(قانوني اصطلاح).

**ـــ سماعي** :- (ـــ(ه) سَ + ما + عِي)

**ـــ سمعي** :- (ـــ(ه) سَ + مْ + عِي) (ف تر، اس، مذ) هغه گواه چې کومه واقعه ئې په خپله نهٔ وي ليدلې خو د اورېدو خبره کوي.

**ـــ کول** :- گواه جوړول، شاهد جوړول.

**ـــ کېدل** :- شاهد کېدل، گواهي ورکول.

اندامونه به گويا شي د بدانو
په بدن به د بدۍ گواه شي خپله (حافظ)

**د ـــ اوړېدل** :- د گواه د خپل بيان نه منکرېدل او بل رنگې بيان ورکول.

**د موقعې ـــ** :- (دَ، مَو + قې ـــ) (فپ، تر، اس، مذ) هغه گواه چې د واقعې په موقع په خپله موجود وي او واقعه ئې په خپلو ستر گو ليدلې وي.

**گواهي** :- (گَ +وا + هِي) (ف، اس، مو) شاهدي ،ثبوت دپاره بيان ورکونه.

**ـــــ ورکول** :- شاهد کېدل ، د ثبوت دپاره خپل بیان ورکول ، شاهدي کول ، شهادت ورکول.

**ـــــ ورکونه** :- (ـــــ وَ + رْ + کَ + ؤ + نَ) ګواهي کونه ، شاهدي کونه ، شاهد جوړېدنه ، شهادت ورکونه.

**ګوب** :- (ګو + ب) (اس، مع) زهره ، مشهور ستورے ، ناهید .

**ګوبلکه** :- (ګو + بَ + لَ + کَ) (اس، مو ، ج ـــ کې) (۱) خرېړے ، بوڅکی، پرېړه، خرمیړے ، مرخیړے.(۲) بوړ بوړکی، حُباب

**ګوبي** :- (ګو + بي) (و ـــ ګوپي)

**بند ـــ** :- (بَ + نْ + د ـــ) (و ـــ بند ګوپي)

**ګوبي** :- (ګو + بي) (اس، مع) د یوې لوئې صحرا نوم.

**ګوبیر** :- (ګو + بِي + ر) (و ـــ ګوپیر)

**ګوپ** :- (ګو+پ) (اس، مذ ، ج ـ ونه) د غواي یا د اوښ کوهان ، کُب

**ګوپ** :- (ګو + پ) (اس، مذ) د ګوجرانو (غوښو) د قام یو غړے.

**ګوپ** :- (ګو + پ) (هـ ، اس ، مو) د سرو زرو د تارونو نه جوړ شوے زنځیر ، د غاړې هار.

**ګوپ** :- (ګُو + پ) (اس، مع) د یو ستوري نوم دے . چې دغه ستورے وخېژي نو زمېنداران د جمي / ژمي د سبزو کر شورو کړي . متل : چې وخېژي ګوپ هم ټېپ کره هم تروپ . (ځینې خلک ئې د مریخ ستورے ګڼي).

**ګوپال** :- (ګو + پا + ل) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) د یو ګل نوم دے .

د تاج سر ئې په ګوپال کړ درې ورې
دا دې وینو ئې عذار د چمن سور کړ (هجري)

**ګوپان** :- (ګو +پا + ن) (اس، مع) د ګوپ ستورے ، یو ستورے چې د سنبلې د میاشت په اول سر کښې راښکاره کېږي . ځینې وائي چې دا د مریخ ستورے دے.

**ګوپړے** :- (ګو + پْ + ړے) (اس، مذ) د مشک د څرمنې پیوند .

**ګوپي** :- (ګو + پِي) (اس، مذ ، ج ـــ یان) یوه سبزي چې لوے ګل لري او د ترکارۍ په ډول استعمالېږي.

**بند ـــ** :- د ګوپي ګل یو قسم چې ټول پاڼې پاڼې وي. او د ګل په شکل کښې نغښتے وي.

**ګوپیر** :- (ګو + پِي + ر) (اس، مذ) ډېر بوډا سړے، زوړ ګړب سړے.

**ګوتار** :- (ګو + تا +ر) (صف ،مذ ،مو ـ ه) اخته ، مبتلا، ګرفتار ګېر

چې زما د کړو ویاړ کوي ګوتار شه
د ګلرخ د کړو وروځو په کړو کښې (حمید)

**ـــــ کېدل** :- ګرفتاره کېدل، نښتل ،ګېرېدل ،اخته کېدل،مبتلا کېدل.

**ګوتخند** :- (ګ + ؤ + تْ + خَ + نْ + د) (اس، مذ) د یوې لوبې نوم چې دوه کړښې او یوه دائره جوړه کړي . بیا یو هډوکے په بل هډوکي داسې وهي چې دغه هډوکے د دائرې نه وباسي . (د ډوکېدو یا ډوکانو یو قسم لوبه).

**ګوتره** :- (ګو + تَ + رَ) (اس، مو) یو قسم بوټے چې په اوبو کښې کېږي او نار ئې د اوبو نه بهر ولاړ وي.

**ګوتري** :- (ګو + ت + رَ + ی) (اس، مو) د مچغنې یا د لیندې (غلېل) پټه ، د مچغنې یا د غلېل هغه پلن ځاے چې په کښې کاڼي وغېره کښېښنودے شي ، پتاخه. کوتوزي.

**ګوتکی** :- (ګ + ؤ + تْ + کَ + ی) (و ـــ ګوتګۍ)

**ګوتکے** :- (ګو / ګُ + ت + کَے) (اس، مذ ، ج ـــ کي) ګوته ، انګشتري ، ګوتکی. (په دې روپو به ګوتکي ، باهوګان راوړم.

**ګوت ګوتے** :- (ګ + ؤ + تْ + ګو + تَے) (اس، مذ ، ج ـ تي) (۱) بدنام سړے ، انګشت نما (۲) هغه سړے چې تحقیر ئې شوے وي. سپک کړے.

ـــــ کـول :- (۱) سپکول ، تحقیر کول.(۲) بدنام کول ، انګشت نما کول ، بدنامول.

**ګوتګی** :- (ګ + ؤ + تْ + ګَ + ی) (اس،مو) ګوته ، انګشتري.

**ګوتلکه** :- (ګ + وَ + تْ + لَ + کَ) (اس، مو، ج ـ کې) (۱) پېغله یا پېغلتوب ته نژدې جینۍ چې نظر پرې ښخېږي (۲) (اصطلاح) هغه پېغله چې د مجرم د طرفه د قتل د قصاص په طور د مقتول وارثانو له ورکولے شي. سوَره.

**ګوت منډي** :- (ګ +و +تْ +مَ +نْ + ډي) یا (ګُ + تْ +مَ +نْ + ډي) (اس، مو) (۱) ګوتې ورکول (چاله) (۲) اعتراض کول ، عېب وښکل.

**ګوتمو** :- (ګ + و + تْ + مَ + وْ) یا (ګُ + تُ ، مَ + وْ) (و ـ ګوتمه).

ګـوتمه :- (ګ + وَ + تْ + مَ) یا (ګُ + تْ + مَ) (اس، مو، ج ـــ مې) انګشتانه ، ګوتمو ، ګتمه.

**ګوتمې** :- (ګ + ؤ + تْ + مَ + ی) یا (ګُ + تْ + مَ + ی) (اس ، مو) انګشتانه.

**ګوتو** :- (ګ + ؤ + تو) یا (ګُ+ تو) د "ګوتې" (جمع) مجروري وغېره شکل چې د مغیره تورو سره راځي.

**په ـــ را (ور) تلل** :- په قبضه کښې راتلل،لاس ته (را) ورتلل، حاصلېدل.

**په ـــ ښو کېدل** :- په ګوتو ښودلے کېدل ، نمایانه کېدل، مشهورېدل.

**د ـــ باجه** :- (دَ ـــ با + جَ) (اس، مو ، ج ـ جې) هارمونیم ، ارموني یا هارموني باجه.

**د ـــ مروړ کول** :- په غصه یا قهر کښې خپلې ګوتې مروړل ، د غصې ښکندونه کول.

چې هومره قهر ، د ګوتو مروړ کړې
پــــه دا پوهېږم زړهٔ به راسوړ کړې (خوشحال خان)

**د / له ـــ وتل** :- د قبضې نه وتل ، د اختیار نه وتل ، د قابو نه وتل.

**دوو ـــ له تلل** :- لوے اودس ماتولو له تلل ، غُل کولو له تلل. (د مدرسو هلکان په دې غرض د اجازت اخستلو دپاره استاد ته دوه ګوتې ښائي)

**ګوته** :- (ګ + و + تَ) (اس، مو، ج ـ تې) (۱) انګشت ، (اُر: اُنګلی) (۲) انګشتري . (اُر : انګوٹھی).

**ـــــ ایښودل** :- اعتراض کول، عېب لټول ، عېب جوئي لټول.

**ـــــ په خولهٔ نیول** :- حېرانېدل ، ډېر زیات حېرانه کېدل.

چې خبــر شي واړه ګوتې په خولهٔ نیسي
په هجران کښې چې خبر شي له مهجوره (رحمان بابا)

**ـــــ په غاښ** :- (ـــ پ، غا + خ / ش)

**ـــــ په خولهٔ** :- (ـــ پ، خ + ل) ډېر زیات حېرانه ، حېرت زده.

**ـــــ خوزول /ښورول، چاته** :- (۱) رعب کښېښول، دَمکي ورکول، وېرول

راته ګوته ښوروې ، ناخواله وائې
حال به ووینې زمونږ د ځان زواله (خوشحال خان)

(۲) د ګوتې په اشارت پوهول.

**ـــــ کول** :- دوکه کول ، چل کول.

**ـــــ لګول** :- (۱) په کاغذ (رسید وغېره) د ګټ لاس د کتې ګوتې نخښه لګول . (۲) مجازاً : ان پړه "بودل". ناخوانده "بودل".

**ـــــ نه تورول** :- هېڅ کار نهٔ کول ، ډکے نهٔ پورته کول.

**ـــــ ورکول** :- (۱) (اصطلاح) لمسول ، راپارول ، شېطانت کول (۲) د چا پټ اندام کښې (مېنځه) ګوته منډل ، شاغت ورکول.

**په ـــــ ښودل** :- د ګوتې په اشارت ښودل.

**په ـــ کول** :- (۱) انګشتري د لاس په ګوته اچول (۲) نشاندهي کول ښکاره کول.

**توره ـــ چا پورې منبل** :- بدنامول ، تور پورې کول.

**ځان په ـــ ښنډل** :- ډېره صفائي کول ، مجازاً : د ډېر نزاکت اظهار کول ځان ښودل

**نمر / نور په ـــ پټول** :- ناشونے کار کول ، د هغې ځیز (عیب یا خوبي) چې ښېخي پټېدے نۀ شي.د پټولو کوښښ کول.

**یو ـــ** :- لږ شان،د لږ وخت دپاره ، لکه : یو ګوته تنبل رباب راته ووهه

**ګوتې** :- (ګ + ؤ + تې) یا (ګُ + تې) (۱) د "ګوته" جمع ده (۲) د "ګوته" بدل شکل چې د مغیره تورو سره راځي.

**ـــ اچول** :- (۱) شورو کول ،شروع کول،په څۀ کار پېل کول (۲) لاس اچول ، د خلاصي دپاره کوښښ کول.

**ـــ ایستل** :-

**ـــ یستل** :- (۱) ګوتې پورې ایستل ، ګوتې د کوم ځیز بلې غاړې ته اباسل (۲) د یو کار نه لاس اخستل.

**ـــ په سترګو کښې منډل** :- د چا په مخ کښې د هغه خلاف یا غلط کار کول ، روغ سرے ړوند ګڼل.

**ـــ په ـــ وهل** :- ځان ته مصیبت راولاړول.

**ـــ تر ګوتې نیول** :- د دوه کسانو د یو بل ګوتې نیولې په لاره تلل د یو بل نه نۀ جدا کېدل.

**ـــ چیچل** :- ډېر زیات قهرېدل ، شونډې یا غوښونه چیچل ، ډېر زیات قهر څرګندول.

**ـــ د څۀ کار وغېره نه وباسل / اباسل** :- دخل نۀ ورکول،تعلق نۀ ساتل.

**ـــ د ګرېوان نه وښکل** :- د چا په معامله کښې دخل ورکولو نه باز راتلل ، منع کېدل .

**ـــ شمارل / شمېرل** :- فکرونه کول ، وهم کول.

**ـــ غوږونو له ور وړل** :- توبه وښکل، د وېزارۍ اظهار کول.

**ـــ مروړل** :- (۱) افسوس کول ، ارمان کول (۲) غصه کول ، قهر څرګندول.

**ـــ نۀ ماتول ، چا سره** :- (محاوره) د قیمت وغېره په حقله چا سره تکرار یا بحث نۀ کول ، بد لحاظي نۀ کول.

**ـــ نۀ ور وړل کار ته** :- ښېخي کار نۀ کول.

**ـــ ورکول** :- په قطار کښې د یو بل ګوتې نیول.

**ـــ وړل ، چاپسې / وهل چاپسې** :- د چا په کار یا معامله کښې دخل ورکول.د چا ، جرم ، ګناه یا د عیب لټونه کول.

**ـــ وهل ، په څۀ کار کښې** :- په کوم کار کښې دخل ورکول ، مداخلت کول.

**پنځه واړه ـــ په خولۀ کښې منډل / ننه یستل** :- هرڅۀ ځان ته راښکل ، بل چاته څۀ نۀ پرېښودل.

**څۀ ځیز سره ـــ خوړل**:- د کوم پخکړي ځیز د صفت په طور وئیلے شي چې دا دومره خوندناک دے چې خوړونکے په بې خبرۍ کښې خپلې ګوتې هم ورسره وخوري.ډېر خوندناک او لذیذ "بودل".

**د ـــ په ځاے سُوک ورمنډل** :- د لږ شان اجازت نه زیاته فائده اخېستل.

**یوې ـــ له تلل** :- تشو متیازو له تلل ، وړوکے اودس ماتول (د مدرسو هلکان د اجازت دپاره یوه ګوته پورته ونیسي.نو مطلب ئې دا وي چې وړو بولو له تلل غواړي).

**ګوتے** :- (ګو + تَے) (اس، مذ ، ج ـ تې) د پخواني ښکاري ټوپک د دارو پیمانه او وزن.

**ګوټ** :- (ګ + ؤ + ټْ) یا (ګُ + ټْ) (اس، مذ ، ج ـ ونه) (۱) ګوشه ، زاویه ، کنج (۲) د وادۀ د جینۍ خپلو همځولو سره د کوټې په یو ګوټ کښې کښېناستنه.(۳) د وادۀ د جینۍ د ګوټ رسم.

**ـــ په ګوټ** :- (ـــ پَ ، ګُ + ټْ) (اس ظر) د کوټې ، کور وغېره سطحې د یو ګوټ (ګوشې) نه تر بل ګوټه (ګوشې) پورې.

**ـــ پېر** :- (ـــ پے + ر) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـ ونه) (۱) هغه ځاے چېرته چې یوه لار یا کوڅه تاوېږي (۲) کړلېچ ، کنبت.

**ـــ کول** :- کنډر کول ،د غلا دپاره د کوټې په دېوال کښې سورے کول.

**ارت ـــ** :- (اَ + رْ + ت ـــ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) لویه زاویه ، منفرجه زاویه ، (نوې وضع ده).

**په ـــ کښې کښېناستل** :- د وادۀ د جینۍ د وادۀ نه یو څو ورځې اګاهو خپلو همځولو سره او کور د عامو خلکو نه جدا کښېناستل.(پخوا به د کوټې په یو ګوټ کښې کښېناسته ځکه دغه محاوره شوه).

**په ـــ ګوټ کښې** :- په هر یو ګوټ کښې.مجازاً : په هر ځاے کښې، هر طرف ته.

**چوخ ـــ** :- (چو + خ ـــ) (اس، مذ، ج ـ ونه) واړه زاویه ، حاده زاویه ، (نوې وضع ده.)

**یو ـــ ته کول** :- (۱) یو ډډې ته کول (۲) د خلکو نه لرې یا پناه کول (۳) په مقابله کښې ماتې ورکول.

**ګوټ** :- (ګو + ټ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) د څښلو دومره مقدار چې بني ادم ئې یو وار خولې ته اچولې شي.جرعه (هـ : ګهونټ) (۲) د کوژدن د اګاهو د نامزدګۍ یو رسم.چې په کښې د جینۍ کوروالہ د هلک د کور مېلمنو له پۍ ورکوي.(عموماً دا په یو لوے جام کښې ورکولے کېدۀ. او هر یو کس به ترې یو ګوټ نیم اخیستۀ.ځکه دا محاوره شوه).

**ـــ کول** :- (۱) د اوبو وغېره مائع ځیز نه یو ګوټ (جرعه) څښل.(۲) د نامزدګۍ په وخت د هلک د کور خلکو ، د جینۍ په کور کښې لږ پۍ (شودۀ) څښل.

**ـــ ګوټ** :- (ـــ ګُو + ټ) (مف) یو یو ګوټ ، جرعه جرعه.

**ګوټ** :- (ګو + ټ) (هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ه) (۱) هغه زرینه پټه کومه چې د لوپټو او قمیصونو وغېره په غاړو حاشیو لګولې شي.(۲) حاشیه ، سنجاب (۳) ټولے ، ډله (۴) د لرګي نه جوړ شوے هغه ځیز چې په مېنځ کښې ئې سورے وي او د ګنډلو تار ترې چاپېره نغښتے شوے وي.(۵) د شطرنج مُهره (۲) کُند ذهن او غبي سړے ، پس ذهن واله.

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لَے) (اس، مذ) کُند ذهني ، د ذهن پسوالے غبي توب.

**ګوټک** :- (ګو + ټَ + کْ) (اس، مذ، ج ـ ونه) څرخے ، د جرثقیل څرخ.

**ګوټکه** :- (ګو + ټ + کَ) (اس، مو ، ج ـ کې) پس انداز ، هغه پېسې ټکې چې د خرڅ نه بچ کړے شي.بچت ، اړوښتے ، پاسره.

**ګوټکه** :- (ګو + ټ + کَ) (اسم ، مؤنث) د لرګي نه جوړه شوې وړه شان ګیټکۍ چې لاندینے سر ئې نرے او بره غټ وي او د مضبوطوالي دپاره ئې ترکان استعمالوي.

**ګوټ ګوټ** :- (ګ + ؤ + ټْ + ګ + ؤ + ټْ) (اس، مذ) (۱) د یوې لوبې نوم دے چې د مېنځې ګوتې په ذریعه په ښودنه کولے شي.(۲) د یو یو ګوټ په مقدار سره غړپ غړپ یو یو ګوټ.

**ګوټل** :- (ګُو + ټ + لْ) (مص) ګوټ ګوټ څښل.

**ګوټله** :- (ګُو + ټ + لَ) (اس ، مو ، ج ـ لې) د ټوپک یو قسم (ف : تفنګ ناوۍ).

**ګوټنه** :- (ګُو + ټ + ن) (حمص) په ګوټ ګوټ څښنه.

**ګوټول** :- (ګو + ټَ + ؤ + لْ) (مص) ګوټ جوړول ، غبي کول ، ذهن پسول

، ذهن پڅول.

**گوتي** :- (گو + تِي) (اس ، مو) د يو تريخ بوټي نوم دے.چې پاڼې ئې د ولې د پاڼو په شان وي. د بره نه شنې او لاندې نه سرې وي. د دارو په طور استعمالېږي

**گوتي** :- (گُو + تِي) (هـ ، اس ، مو ، ج ـــ تې) هغه خاص خوراک چې ماشوم له ورکولے شيي.(هـ : گُهتي)

**گوتي** :- (گو + تَ + ی) (اس، مو) د نرد د لوبې تخته.

**گوتے** :- (گ + وْ + تَے) (اس، مذ ، ج ـــ تي) گونيا ، د معمارانو يوه عامه اله ، چې قائمه زاويه لري.

**گوتے** :- (گو+ تَے) (لاحقه) د پښتو لاحقه ده. د تصغير (وړوکوالي) معنٰى ورکوي.(لکه : دېوال گوتے ، زړگوتے).

**گوتېدل** :- (گو + تے + د + لْ) (مص) غبي کېدل ، ذهن پسېدل ، ذهن پڅېدل، کند ذهن کېدل.

**گوتيز** :- (گو + تِي + ز) (صف، مذ ، مو ـــ ه) هغه څيزونه چې گوټونه (گوشې) لري.گوټونو واله.

**څلور ـــ** :- (شَ + لو + ر ـــ) (۱) هغه څيز چې څلور گوټونه (گوشې) لري. (۲) مربع يا مستطيل.

**گوتين** :- (گو + تِي+ ن) يا (گ + وَ + تِي + ن) (ـــ گوتيز)

**گوجر** :- (گُو + ج + رْ) (اس، مع) د غوبنو يوه قبيله يا قبيلې دي چې د پښتنو سره سره ځاے په ځاے اباد دي. او غوا مېښې ساتي يا گډبانۀ دي. زميندارې هم کوي. د هزارې ضلع طرف ته چې د دوي کوم خلک اباد دي.هغه ددې سيمې پخواني خلک گڼلے شي.دا خلک د پښتونخوا نه علاوه پنجاب او نورو ځايونو کښې هم اباد دي. ځينې وائي چې دا د سپين هن قوم سره تعلق لري.ځينې وائي چې راجپوت دي.د دوي ډېرې څانگې دي.

**گوجر** :- (گُو + ج + رْ) (اس، مذ ، ج ـــ ان) (۱) د يو قوم نوم ، چې کارکسب ئې غوا مېښې څرول،لوشل او پيې شودۀ خرڅول دي. (۲) د کلو نوم ، لکه : مياں گوجر.

**گوجرکے** :- (گو + ج + رْ + کَے) (اس، مذ ، ج ـــ کي) د مِلا د تير په غوټو (مهرو) کښې يوه غوټه (مهره).

**گوجره** :- (گُو +ج + رَ) (اس، مو ، ج ـــ رې) د "گوجر" تانيث دے

خپلې خپلې شوملې ستائي

چې شـوملې پېرې گوجرې (خوشحال خان)

**گوجک** :- (گو + جَ + کْ) (صف، مذ، مو ـــ ه) پتيره (د خمبيره ضد) اغږلې شوي اوړۀ چې لاخمبيره شوي نۀ وي.

**گوجکه** :- (گُو + ج + ک) (اس ، مو ، ج ـــ کې) يوه وړه شان حشره چينجے دے چې په ونو خاص کر په رشقه او شوتلو کښې موندے شي. سور رنگ لري.خلک ئې د لېوني سپي خوړلي د علاج په طور استعمالوي.

**گوجي** :- (گو + جِي) (اس، مو) په پيو (شودو) کښې لږ شان ماستۀ يا شوملې اچول ، چې ماستۀ شي.تومنه.

**گوجے** :- (گُو + جَے) (اس، مذ ، ج ـــ جِي) گرونځې ، گونځې.

**تندے ـــ کول** :- تندے گرونجې کول ، په تندي گرونځې جوړول. د ناخوښې يا د کرکې اظهار کول.

**گوجے** :- (گو + جَے) (اس، مذ ، ج ـــ جِي) (۱) کونجکه ، د سمندري چينجو کور (۲) د سترگو گل.

**گوچي** :- (گو + چَ + ی) (اس، مو) د خربوزو يو قسم چې په غرونو کښې کېږي.

**گوچي** :- (گو + چَ + ی) (اس، مو) گونډے ، چلے ، ادی ، موځ ، گونتيه (د لوبو) د لوبو هغه غونډۍ ټيکرې چې د ټيکرکو يا د کاڼو نه جوړولے شي.)

**گوڅے** :- (گُو + رت) سَے) (اس، مذ ، ج ـــ څي) تور(بخن) خربزے چې خوړلے کېږي.گوچي.

**گوداړه** :- (گو/گُ + دا + ړَ) (اس، مو ، ج ـــ ړې) په څټ باندې په سوک وهنه ، (ف : پس گردني).

**گودال** :- (گو + دا + ل) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) کنډه ، کړنگ ، کرهچ، ډوغل.

**گودام** :- (گو + دا + م) (انگ ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) د ذخيرې ځاے ، انبار خانه ، گدام (۲) هغه کوټه يا ځاے چېرته چې د کور مات گډ او بېکاره څيزونه پراتۀ وي.

**گودامي** :- (گو + دا + مي) (اس، مذ) د گودام محافظ ، د ذخيرې د کوټې يا ځاے منتظم.

**گودان** :- (گُو + دا + ن) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) ټټي ، چارچوبې ، د غلو ځاے ، پاټ ، کموډ.

**گودر** :- (گو/گُ + د + ر) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) په درياب يا خوړ کښې هغه ځاے چې د پورې وتلو دپاره موزون وي. د درياب نه د پورې وتلو ځاے (۲) د سيند ، ولې يا د خوړ هغه ځاے چېرته چې زنانه اوبۀ ډکوي.

د جلاله گودره وران شي

په جينکو دې سالنډے ولگونه (ټپه)

**بې ـــ گډېدل** :- بې ځايه په سيند کښې ورگډېدل ، بې لارې تلل ، غلط او د خطرې کار کول.

**گودره** :- (گو + د + رَ) (اس، مو ـــ رې) نرے لاړے ، نرۍ برگه.

**گودره** :- (گو + د + رَ) (اس، مو ، ج ـــ رے) د لرگي چت چې د اوږدو لهړو او د لنډو وړو لرگو نه جوړولے شي.

**گودړ** :- (گو + د + ړْ) (اس، مذ ، ج ـــ ان) (۱) زوړ او له کاره وتے څاروے (۲) زوړ او بېکاره.

**گودړ** :- (گو + د + ړ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) سيپۍ ، صدف.

**گودړ** :- (گو + د + ړْ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) زړه شلېدلې جامه.

**گودړه** :- (گو + د + ړَ) (اس، مو، ج ـــ ړې) د "گودړ" تانيث.

**گودړي** :- (گو / گُ + دْ + ړَ + ی) (هـ ، اس، مو) د فقيرانو زوړ پېوند شوې کمبله يا څادر.(هـ: گدړی).

**گوډ** :- (گو / گُ + ډْ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) لنگ ، چې يوه پښه ئې بېکاره وي.

**ـــ گوډے** :- (ـــ گو/گُ +ډَے) د يوې لوبې نوم دے چې گډ گډ تگ په کښې کوي.

**شل ـــ** :- (شَ + لْ ـــ) (صف) (۱) هغه سړے چې په لاسو او پښو دواړو معذوره وي.(۲) مجازاً بېکاره سړے ، چې هېڅ کار نۀ شي کولے.

**گوډ** :- (گو + ډ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) د جوارو وغېره فصل ته په خاص رمبې زمکه نرمول او اوبۀ ماتبۀ اېستل.

**ـــ کول** :- د جوارو وغېره پټي کښې په (خاص) رمبې زمکه نرمول (لړه لړه کندل) او ځنگلي خود رَو واښۀ ماتبۀ اوباسل.

**ـــ گر** :- (ـــ گَ + رْ) (اس، مذ ، ج ـــ ان) گوډ کوونکے ، گوډي ، په اجرت باندې په پټي کښې گوډ کوونکے.

**گوډا** :- (گو / گُ + ډا) (صف) گوډ يا گډ سړے (تحقيراً).

**گوډا** :- (گو / گُ + ډا) (هـ ، اس، مذ) د گډۍ مذکر دے.د جينکو د لوبو څيز ، گوډي گوډا. (گډۍ گډا)

**گوډاگے** :- (گُو + ډا + گے) (اس، مذ ، ج ـــ گي) (۱) وړوکے "گوډا" (۲) ماشوم ته د مينې نه وائي.

**ګوډانه** :- ( ګو + ډا + نَ ) ( اس، مو، ج ـــ نې ) (۱) جیب ، د ترخ جیب (۲) هغه څادر چې په کښې د ونې مېوه د شوکولو په وخت جمع کولے شي ـ (۳) جوله ( جولۍ ) چې په سر کښې زوړند وي او واړهٔ نرې څیزونه په کښې یړدي ، شخولۍ ـ لکه : هر یو ځان ته ګوډانه ډکوي (۴) ګوډے ـ

**ګوډباڼے** :- ( ګو + ډ + با + ڼے ) ( اس، مذ ، ج ـــ نیي ) هغه مزدور یا نوکر چې د ښکار یا د سفر په وخت چا سره وي او د هغه جاماو د سامان حفاظت کوي

**ګوډل** :- ( ګو+ډُ + لْ ) ( اس، مو ، ج ـ لې ) د ځاروو د تړلو ځاے غوجل ـ

**ګوډل** :- ( ګو + ډ + لْ ) ( مص ) ریبل ـ

**ګوډو** :- ( ګو + ډو ) د ګوډه جمع ـ په مغیره شکل کښې استعمالېږي ـ

**په ـــ کېدل** :- چیلم څښلو یا ټوپک چلولو ته په زنګنونو کښېناستل ، اماده کېدل ( کوم کار ته ) ـ

**ګوډول** :- ( ګو + ډَ + وُ + لْ ) ( مص ) ګډ کول ، د پښې نه بېکاره یا معذوره کول ـ

**ګوډوے** :- ( ګو + ډو + ے ) ( اس، مذ ، ج ـــ ي ) د شرابو لوښے ـ

**ګوډه** :- ( ګو + ډَ ) ( هـ ، اس، مو ، ج ـ ډې ) زنګون ، ځنګون ( هند : ګوډه ) ـ

**ګوډه** :- ( ګو / ګُ + ډَ ) د ګوډ ( ګډ ) تانیث دے ـ

**ګوډي** :- ( ګو + ډي ) ( اس، مذ ، ج ـــ ان ) ګوډ کوونکے ، په اجرت باندې په پټې کښې ګوډ کوونکے ، ګوډمار ـ

**ګوډې** :- ( ګو + ډې ) (۱) د "ګوډه" جمع ده (۲) د "ګوډه" مجروري شکل چې د مغیره تورو سره راځي ـ

**ـــ ماتول** :- (۱) زنګنونه ماتول ، ګونټې ماتول ، داسې کښېناستل چې زنګنونه په زمکه ولګي ـ (۲) په ګوډو کېدل ، د ټوپک چلولو په وخت ځان سمول ـ

**ګوډۍ** :- ( ګو / ګُ + ډَ + ی ) ( اس، مو ، ج ـــ انې ) د جینکو د لوبو څیز چې د چیړرو یا پلاستک نه د جینۍ یا د هلک په شان جوړ کړے وي ـ جامې ورته اغوندوي ـ او بیا ئې ګوډا سره ودوي ـ ( د جینکو د تربیت یوه طریقه ده چې د لوبو په شکل کښې زده کوي ) ـ

**ـــ لوبول** :- (۱) ګوډیانو سره لوبې کول ( د جینکو (۲) د وړوکي عمر استعاره ده ـ لکه : لاخو هغه ګوډۍ لوبوي یا ګډیانو سره لوبې کوي ـ

**ګوډۍ** :- ( ګو / ګُ + ډَ + ی ) ( هـ ، اس، مو ) باډیوه ، باد هوا ، پتنګ ( کاغذ چې په هوا کښې الوزولے شي ) ـ

**ګوډۍ** :- ( ګُ + ډَ + ی ) ( اس، مو ) د "ګوډے" تانیث ـ ګوډه ( ګډه ) ښځه یا جینۍ ( تحقیراً ) ـ

**ګوډے** :- ( ګُو + ډَ ے ) ( اس، مذ ) (۱) د ځاروو یو مرض دے چې ځاروي پرې په پښو ګډ شي (۲) یو قسم چینجے چې د جوارو د بوټو په وېخ کښې پیدا شي او د جوارو بوټي وچ کړي ـ

**ګوډے** :- ( ګُو + ډَ ے ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ډي ) د جوارو تازه وړے چې تشه توکه وي ـ او لائي دانې نهٔ وي کړې ـ

**ګوډے** :- ( ګو + ډَ ے ) ( اس، مذ ، ج ـــ ډي ) مشکیزه ، د اوبو وړوکے مشک ـ

**ګوډے** :- ( ګو + ډَ ے ) ( اس، مذ، ج ـ ډي ) د سخي یا د ګډ وغېره د څرمنې نه جوړه شوې تبلۍ یا لویه کځوره چې د اوبو وړلو یا د شوملو شاربلو وغېره کار ترې اخستے شي ـ یا څیزونه په کښې کښېښودے شي ـ

د میرزا دیوان مې ومانده په ګوډي
مسخره مې ارزاني خوېشکي زمند کړ ( خوشحال خان )

(۲) د شوملو مستو د مشک لاستے ـ (۳) د غوا مېښې بچے چې مړ شي نو څرمن ئې د بوسو یا کپړې نه ډکه کړے شي ـ او غوا مېښې ته ودروي ـ

**د غلو ـــ** :- ( دَ ، غُ + لو ـــ ) ډېر بېکاره سړے چې هېڅ کار ترې نهٔ کېږي ـ غلاوڼ ، نالائقه ـ

**د نایانو ـــ** :- ( دَ ، نا + یا + نُ ـــ ) ( اس، مذ ، ج ـــ ډي ) هغه خاص د څرمنې ګوډے چې په کښې نائیان د حجامت وغېره سامان کښېږدي او ترڅ ته ئې اچوي ـ کسبت ـ

**ګوډے** :- ( ګُ + ډَ ے ) ( اس، مذ ، ج ـــ ان ) ګوډا ، ګډ ( ګوډ ) سړے ـ ( تحقیراً وئیلے شي ) ـ

**ګوډے** :- ( ګو + ډ ے ) ( اس ، مذ ، ج ـ ډي ) د ګوډ کولو وړومبے رمبے ـ

**ګوډیاري** :- ( ګُو + یا + رِي ) ( اس ، مو ) د غړکے ( د شوملو شاربلو د مشک ) دستکے چې د دې په ذریعه دا مشک زوړند کړے شي او بیا شاربلے شي ـ

**ګوډیارۍ** :- ( ګو / ګُ + ډْ +یا+رَ + ی ) ( اس، مو ) د اوبو وړوکے مشک ـ

**ګوډیال** :- ( ګو + ډ + یا + ل ) ( اس، مذ ، ج ـــ ونه ) وړوکے رمبے یا کدالۍ چې بوټي پرې وباسي ـ

**ګوډي چړک** :- ( ګو / ګُ + ډي + چ + ڑ + ک ) ( اس ، مذ ، ج ـ ان ) ملاچرګک ، ملاچرچک ، هُد هُد ، ببوګے ـ

**ګوډیکه** :- ( ګو / ګُ + ډْ + يَ + کَ ) ( اس، مو ، ج ـ کې ) (۱) د ګوډو خلکو همسا چې په ترخ کښې کښېښودے شي ـ ډانګوره ـ (۲) هغه دوه ښاخه غټ لرګے چې په مېنځ کښې ئې د کوهي څرخۍ دوک تړلے شوے وي ـ (۳) د څپلۍ یو شاتنۍ حصه (۴) وړه ګوډۍ ـ

**ګوډیه** :- ( ګو / ګُ + ډْ + يَ ) ( اس، مذ ) تسمه چې د مشک لاستي پرې تړلے شي ـ

**ګوذار** :- ( ګو / ګُ + ذا + ر ) ( اس، مذ ، ج ـــ ونه ) (۱) ضر ب په لاس یا په بل څیز وهنه ، (۲) و ـــ ګذار ( لاحقه ) ـ

**ګور** :- ( ګ + وَ + رْ ) ( صف ) سیال ، برابر ، همسر ـ

**ـــ توب** (۱) :- ( ـــ توب + ب )

**ـــ تیا** (۲) :- ( ـــ ت + یا ) ( اس (۱) مذ ، (۲) مو ) سیالي ، همسري ، برابرے ، مقابله

**ـــ والے** :- ( ـــ وا + لے ) ( اس، مذ ، ج ـــ لِي ) همسري ، سیالي ، برابرے ، مقابله ـ

**ګور** :- ( ګو + ر ) ( ف ، اس، مذ ، ج ـــ ونه ) قبر ـ

**ـــ پرست** :- ( ـــ پَ + رَ + رْ + ت ) ( ف تر ، صف ، اس، مذ ، ج ـ ان ، مو ـــ ه ) د قبر پرستش کوونکے ـ

**ـــ کفن** :- ( ـــ کَ + فَ + نْ )

**ـــ کپن** :- ( ـــ کَ + پَ + نْ ) ( فپ ، تر ، اس، مذ ) (۱) د مړي د کفن او د قبر د کنستلو انتظام (۲) د مړي د کفن او د قبر د کنستلو خرڅ (۳) هغه پیسې ټکې کومې چې چا د خپل کور او د کفن د خرڅ دپاره محفوظې ایښې وي ـ

**ـــ کن** :- ( ـــ کَ + نْ ) ( ف تر ، اس ، مذ ، ج ـ ان ) هغه کس څوک چې قبرونه کني ـ قبر کندے ـ

**ـــ کنی** :- ( ـــ کَ + ن + يْ ) ( اس، مو ) ګورکنی ، مشهور ځناور ، بغسه ، ګورګوټی ـ

**ـــ ګوټی** :- ( ـــ ګو+ټَ +ی ) ( پ تر ، اس ، مو ) ګورکنی ، ګورکاو ـ

**په ـــ ئې نور شه** ! :- ( جمله ) دعائیه جمله ده د چا مشر یا ښهٔ سړي چې مړ شوے وي ـ د ذکر په وخت د دعا په طور وئیلے شي ـ

زما پلار ، په ګورئې نور شه
يــو ريښتينې ؤ هـــــر ګوره (خوشحال خان)

**د ـــ په غاړه ولاړ** :- مرګ ته نژدې ، ډېر زيات بوډا يا معمر.

**د ـــ ښتې پورې کېدل** :- په لحد کښې د مړي د کښېښودلو نه پس لحد په کچه خښتو بندول.

غنيمت هومره ديدن دے د يـــــارانو
څو لا نۀ وي پسې پورې د ګور خښتې (حميد)

**د ـــ مړے** :- (۱) هغه مړے چې ښخ شوے وي.

نۀ به ترکو وړے زړۀ راشي په لاس کښې
نـۀ بـه مــړي شــي د کــور ببرته ستانۀ (حميد)

(۲) مجازاً ډېر مانده او زيړ زبېښلے سړے.

**د ـــ مړي را اېستل** :- مجازاً ښځې او هېرې په تېرې خبرې بيا راپه يادول ، هېر کړے شر ، فساد ، دښمني وغېره بيا راپورته کول.

**وچه غاړه ـــ ته تلل** :-

**وچې غاړې ـــ ته تلل** :- په ډېر عاجزۍ او مفلسۍ کښې د تکليفونو نه پس مړ کېدل.

**ګور** :-(ګُو + ر ) (صف، مذ ، مو ـــ ه ) د ونې يا د وريځې وغېره صفت دے. چې داسې ګڼه وي چې رخنه په کښې نۀ وي. لکه ګوره ونه.

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب )

**ـــ تيا** :- (ـــ ت + يا ) (اس) ګور والے ، ګڼ والے.

**ـــ کېدل** :- ګڼېدل ، د ونې څانګې ، پاڼې زياتېدل.

**ـــ والے** :-(ـــ وا + لَے ) (اس، مذ ، ج ـــ لِي ) د ګور صفت ، ګڼ والے.

**ګور** :- (ګُو + ر ) (اس، صوت ) هغه اواز چې زلزلې سره سم پېدا کېږي. غُر.

**ګورائه** :- (ګو+ را + (د) زَ ) (اس، مو ، ج ـــ ځې ) ګودړۍ ، زړه شلېدلې او پېوند شوې جامه.

**ګوراډۍ** :- (ګو + را + ډَ + ی ) (اس، مو ) پوهړه او بې سليقې او بد رنګه ښځه.

**ګوربټ** :- (ګُو + رْ + بَ + ټْ ) (اس، مذ) باتور، عقاب.

**ګوربز** :- (ګو + ر + ب + زْ ) (اس، مذ ) د پښتنو د ځينو قبائلو سره تعلق لرونکي دي.

**ګورت** :- (ګ + وَ + رَ + تْ ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د دوو ګوتو تر مېنځ فاصله ، ګرت.

**ګورتے** :- (ګُو + ر + تَے ) (اس، مذ ، ج ـــ تِي ) هغه څيز چې د کتې ګوتې اوو د مسواکې (شهادت) ګوتې تر مېنځه ځائيدے شي.

**ګورجه** :- (ګُو + رْ + جَ ) (اس، مو ، ج ـــ جې ) سُور رنګې الوچه.

**ـــ مخ** :- (ـــ م + خْ ) (پ تر ، اس، مذ ، ج ـــ ونه ) سُور مخ.

**ګورجۍ** :- (ګو + ر + جَ + ی ) (اس، مو ) د زنانه پڼو يو پخوانے قسم.

**ګورجے سپۓ** :- (ګُو+ ر + جَے + س + پَے ) (پ تر ، اس، مذ، ج ـــ يــ ي ) د ښکاري سپو يو خاص قسم ، د مړزو ښکاري سپے.

**ګورزے** :- (ګو + ر + زَے ) (اس،مذ، ج ـــ زِي ) ګورخر ، مشهور ځناور ، ځنګلي خر ، ګوړاخر ، غېره ، غېړه.

**ګورستان** :- (ګو + رِ + سْ + تا + ن ) (اس، ظر ، مذ ، ج ـــ ونه) قبرستان ، مقبره.

**ګورسنګ** :- (ګَ + وَ + رْ + سَ + نْ + ګْ ) (اس، مذ ) د تور کاڼي (سنګِ سياه ) يو قسم چې ډېر سخت وي. په جرنده (ژرنده) پکارولے شي.

**ګورکښ** :- (ګو + ر + کَ + خْ / شْ ) (و ـــ ګورکن )

**ګورکے** :- (ګو+ ر + کَے )( اس ، مذ ، ج ـ ان ) د نېپال د علاقې اوسېدونکے ، پخوا د پېر په فوج کښې دا خلک ډېر برتې کېدل.

**ګورکے** :- (ګُو / ګُ + رْ + کَے ) (و ـــ ګورهار )

**ګورګټ** :- (ګو + ر + ګَ + ټْ ) (اس، مذ ) شاهباز.

**ګور ګوره** :- (ګو/ ګُ + رْ + ګو /ګُ + رَ ) (اس، مذ ، ج ـــ رې ) مشهوره غرئيزه مېوه چې د وړو کرکڼو (بېرو) هومره وي. تور سوزني رنګ لري. ګرګره.

**ګورل** :- (ګو + رَ + لْ ) (مص) کتل سره جوړه مصدر دے چې ځينې فعلونه د کتل نه / څخه جوړېږي. او ځينې د ګورل نه / څخه (د مصدر په حېث نۀ استعمالېږي.)

**ګورم** :- (ګ + ر + مْ ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه ) (۱) د غواؤ مېښو ګله ، پاده (۲) مجازاً د خلکو جمع ، جماعت ، ټولے ،

نۀ يو سور د تير اندازو
نـــۀ ګــورم د نېزه بـازو (خوشحال خان)

**ـــ ګات** :- (ـــ ګا + ت )

**ـــ ګاټ** :- (ـــ ګا + ټ ) (پ تر، اس، مذ) د ګډو بزو محصول.

**ګورم** :- (ګو + ر + مْ ) (فعل ) د کتل / ګورل مصدر نه د حال فعل.

**ګورمکۍ** :- (ګو + ر + مَ + کَ + ی ) (اس، مو ) د چرګو يو قسم چې ډېره وړه او مندرۍ وي.

**ګورمل** :- (ګُو + رْ + م + لْ ) (مص) غټو غټو ټکونو سره ، سرسري ګنډل.

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب ) (اس، مذ) بړوسوالے ، کاړساوے ، خفګان ، سوخت ، غصه ، غضب ، قهر.

**ګورملے** :- (ګُو + ر + مَ + لَے ) (اس، مف ، ج ـــ لي ) غټو غټو ټکونو سره سرسري ګنډلے شوے.

**ګورمنټ هاؤس** :- (ګو +رْ + مِ + نْ + ټْ + ها + ؤ + س ) (انګ ، اس، ظر) د ګورنر د اوسېدو ځاے (اصلاً دا لفظ ګورنمنټ دے. يعنې ګَ +وَ +رْ + نِ + مِ + نْ + ټْ. ولې عام طور سره ئې تلفظ "ګورمنټ" کېږي).

**ګورمنټي** :- (ګو + ر + مِ + نْ + ټِي ) (انګ ، صف ) ګورمنټ يعني حکومت سره تعلق لرونکے ، حکومت ته منسوب.

**ـــ کاغذ** :- (ـــ کا + غَ + ذْ ) (انګ ، پ تر ، اس، ج ـــ ونه ) (۱) د رسېدونو وغېره د پاس د حکومت د طرفه منظور شوے کاغذ چې د حکومت ابې نشان لري. د ضرورت مطابق په دې باندې ټکټونه لګولے شي. (۲) اشتهام.

**ګورمنه** :- (ګُو + ر + م + نَ ) (حمص ) غټ غټ او سرسري ګنډنه.

**ګورمېدل** :- (ګُو + ر + مې + د + لْ ) (مص) (۱) چړکسے وهل ، څانګې وهل ، څرسکے وهـل، برېښ کـول ، برېښېدل ، ټونګه وهل (۲) په کور کښې د بد اخلاقۍ او قهر سره خبرې کول ، غورېدل ، غور غور کول.

**ګورمېدونکے** :- (ګُو + ر + مې + دُو + نْ + کَے ) (اس، فا ، ج ـــ کي ) هغه سړے چې بل سره په قهر او بد اخلاقۍ سره خبرې کوي. غورېدونکے ، غور غور کوونکے.

**ګورنډه** :- (ګو + رَ + نْ + ډَ ) (اس، مو، ج ـــ ډې ) (۱) وړوکے شان کور ، کورګوټے ، تنګ او تيارۀ او وړوکے کور (۲) زوړ قبر (۳) جور/ ژورلۍ (۴) د غواؤ د تړلو ځاے ، د څاروو د تړلو ځاے.

**ګورنر** :- (ګَ + وَ + رْ + نَ + رْ ) (انګ ، اس، مذ ، ج ـــ ان) (۱) حکومت کوونکے ، د صوبې لوے حاکم (۲) د کومې ادارې د منتظمينو يو غړے (۳) د مشينونو يو خاص پرزه چې مشين ته ګېس رسوي (۴) د مشينونو هغه پرزه چې د مشين رفتار په قابو کښې ساتي.

**ـــ جنرل** :- (ـــ جَ + نْ + رَ + لْ ) (انګ ، تر ، اس، مذ ، ج ـ ان) لوے ګورنر ، د پېرنګيانو په بادشاهۍ کښې د دوي د ملکونو د لوے حاکم عهده.

**ګورنره** :- (ګَ + وَ + رْ ن + رَ ) د "ګورنر" تانيث دے.

**گورنري** :- (گَ + وَ + رْ + نَ + رِي) (اس، مو) (۱) د گورنر عهده ، (۲) د گورنر د حکومت د لاندې صوبه وغېره.

**گورنس** :- (گَ + وَ + رْ + ن + سْ) (انگ ، اسو مو ، ج ــ انې) خاص استاده ، نگرانه ، خصوصاً په شتمنو کورونو کښې هغه تعليم يافته ښځه چې د ماشومانو خصمانه او تربيت کوي.

**گورنل** :- (گو + رْ + نَ + لْ) (عاميانه) (و ــ گورنر)

**گوروالي** :- (گو / گُ + رْ + وا + لِي) (اس، مو) غوبه توب ، غوا مېښې څرونه

**گوران** :- (گو + ر + وا + ن) (اس، مذ ، ج ــ ان ، مو ــ ه) غوبه ، غوا مېښې څروونکے ، پاده وان.

**گوروانکه** :- (گو + رْ + وا + ن + کَ) (اس، مو ، ج ــ کې) د يوې مرغۍ نوم دے.شتوره.

**گورواني** :- (گو + ر + وا + نِي) (اس، مو) غوبه توب ، غوا مېښې څرونه ، گله باني ، پاده واني.

**گورول** :- (گو + رَ + ؤ + لْ) (مص) سختو خبرو يا بدو خبرو ته اماده کېدل ، په غور غور راوستل ، په قهرول.

**گوره** :- (گو + رَ) (اس، مو ، ج ــ رې) د درياب په غاړه وغېره هغه لوے سُورے چې د بهاندو اوبو په زور جوړ شي.

**گوره** :- (گو + ر) (اس، مذ ، ج ــ گان) (۱) د ائير لښکر اوسېدونکے ائرش سړے.پخوا د پېرنگيانو د فوځ اکثره خلک د دغې قام نه / څخه وو. (په هندۍ کښې گوره سپين ته وائي.گوري : سرۀ سپينه ښکلې جينۍ) (۲) مجازاً : هغه سړے چې د ادب اداب خيال نۀ ساتي.

**گوره** :- (گو + رَ) (جمله) انتظار کوه ، تماشه کوه.

**گوره** :- (گو + رَ) د "گور" بدل شکل دے.چې ځينو مغيره تورو سره راځي. لکه : له گوره تر اخرته.

**گوره** :- (گو + رَ) (اس ، مو) د اوسپنې هغه نرۍ رېزې چې په سوهان کولو ترې پېدا کېږي.د اوسپنې چوره.

**گوره** :- (گُو + رَ) د "گور" تانيث.

**ـــ اونه** :- (ـــ او + نَ)

**ـــ ؤنه** :- (ـــ ؤ + نَ) (اس، مو،ج ـــ نې) داسې ونه چې څانگې پاڼې ئې ښې ډېرې او گنجلکې وي چې اسمان په کښې نۀ ښکاري.

**ـــ وريځ** :- (ـــ ؤ + رْ + يَ + د + زْ) (اس، مو ، ج ــ ځې) هغه وريځ چې ښۀ ډېره گڼه وي.چې هېڅ رڼا په کښې نۀ ښکاري او تيارۀ شان جوړه کړي.

وريځې گورې گورې راغلې
شنډې به نۀ ځي خدا ے به وکړي بارانونه (ټپه)

**گورهار** :- (گُو + رَ + ها + ر) (اس ، صوت) (۱) د گور گور مسلسل اواز (۲) د زلزلې په وخت پېدا کېدونکے اواز (۳) د غور غور مسلسل اواز (۴) د غوربدلو اواز ، (۵) د گڼو خلکو د زغلېدلو اواز.

**گوره خر** :- (گو + رَ + خَ + رْ) (اس، مذ ،ج ــ ه) صحرائي ،ځنگلي خر.

**گورهنډه** :- (گو + ر + هَ + نْ + ډَ) (اس، مو ، ج ــ ډې) (و ــ گورنډه)

**گورۍ** :- (گو + رَ + ئ) (اس، مو) دل شوي غنم ، دل (چې پاخۀ شي) اتوب گېرگېره.

**گورئيز** :- (گو + رَ + يِ + زْ) (صف) (۱) گوره گانو سره منسوب (۲) د پخوانو گلتپي ټوپکو يو قسم.

**گورئيزه** :- (گُ + و + رَ + يِ + ز + ه) گوره گانو سره منسوب ، يو خاص قسم تماچه ، گوريزه.

**گوري** :- (گو + رِي) (فعل) د کتل/گورل فعل نه/څخه د حال فعل.

**گوري** :- (گو + رِي) (اس، مو) دوکه ، فرېب ، ټگي ، په لوبه کښې ټگي.

**ـــ کول** :- ټگي کول ، (په لوبه کښې) دوکه ورکول ، فرېب کول.

**گوري ټپه** :- (گُو + رِي + ټَ + پَ) (تف) ناڅاپه ، ناگهانه ، غوري ټپه.

**گوريجن** :- (گو + رِي + ج + نْ) (صف، مذ ، مو ــ ه) دوکه مار ، فرېبي ، ټگ جن.

**گوري سمسه** :- (گو + رِيْ + سَ + مْ + سَ) (اس، مو ، ج ــ سې) (۱) کوئله، (مشهوره خوش اوازه مرغۍ ، سپېره مرغۍ ، کړڅي، کړېڅ (۲) ځينې خلک تورانکۍ ته هم وائي.توره انۍ ، تورانۍ.

**گوريلا** :- (گو + ري + لَ) (اس، مذ) د افريقې د بيزوگانو يو غټ قسم چې اودربېږي نو تقريباً شپږ فټه وي.رنگ ئې عموماً تور وي ، جنگ کښې لرگے استعمالوي.

**گوريلا** :- (گو + رِي + لَ)

**گوريله** :- (د دغه) (اس، مذ ، ج ــ گان) د فوځ يوه خاص څانگه چې د منظم فوج په شان جنگ نۀ کوي.بلکې په پټه طريقه ځان ځان ته يا په وړو وړو ډلو کښې په دښمن حملې کوي.

**ـــ جنگ** :- (ـــ جَ + ن + گْ) (اس، مذ ، ج ــ ونه) د گوريله ؤ سپاهيانو د جنگ طريقه ، چې باقاعده د فوځ په شان نۀ جنگېږي. بلکې غېر منظم طور سره ځان ځان له يا په وړو وړو ډلو کښې په پټه په دښمن حملې کوي.

**گوريلائي** :- (گو + رِي + لا + ئِي) (صف، مو) د گوريلاؤ په شان ، د گوريله ؤ په طريقه.

**گوريمار** :- (گو + رِي + ما + ر) (صف، مذ ، مو ــ ه) ټگ جن ، دوکه مار ، په لوبه کښې ټگي کوونکے.

**گوري موري** :- (گو + رِي + مو + رِي) (اس، ظر) ناڅاپه ، ناخبره، گوري ټپه.

**گورېدل** :- (گو + رې + د + لْ) (مص) گڼېدل ، د ونې ، وريځ وغېره په حقله استعمالېږي.لکه: په اونه کښې څانگې يا پاڼې ډېرې زياتېدل، چې اسمان يا نمر په کښې نۀ ښکاري.(ار: کهنا هونا).

**گورېدل** (۲):- (گُو + رې + د + لْ) (مص) غور غور کول ، ځان سره په غصه وېنا کول ،(چې بل ئې په معنٰى نۀ پوهېږي.خو د غصې حالت ئې ويني) غصه قهر کول ، بد رد وئيل ، د بد اخلاقۍ سلوک کول ، چرچقې وهل.

**گورے مورے** :- (گُو + رے + مو + رے) (صف، مذ ، مو ــ ئ، ئ) ناڅاپه ، دفعةً ، نابېره، ناگاهه ، لکه : فلانے ئې گورې مورے ونيوو.

**گورے** :- (گو + رَے) (اس، مذ) د اوسپنې بوره ، د اوسپنې رېزې.

**گوړ** :- (گُو + ړ) (اس ، صوت) (۱) د گېډې د باد اواز ، کړ ، کوړ ، (۲) د وريځو اواز ، عموماً "گړ" سره يو ځاے راځي لکه : باران گړ گوړ سره راغے.

**گوړ** :- (گو + ړْ) (اس، مذ ، ج ــ ونه) هغه وړه سوړه يا غار چې د بهاندو اوبو په زور په نهر ، واله يا پټي کښې پېدا شي.

له هغو ستر گو به ډک لښتي بهېږي
چې مـــاتېږي پې د زړۀ د مينې گوړ (خوږدل)

**گوړ** :- (گو + ړا) (اس، مذ) د خاکي رنگ يوې اوښې نوم.

**گوړا** :- (گُو+ړا) (اس، مذ) د مالې يو قسم (چې پټے پرې هوارولے شي).

**گوړابې** :- (گو + ړا + بَ + ى) (اس، مو) (۱) هغه اوبۀ چې د يو لوے سوري نه د ابشار په شکل بهېږي (۲) د هلکانو يوه لوبه چې اوبو او خټو سره کولے شي.

**گوړاخر** :- (گو + ړا + خَ + رْ) (و ـــ گوره خر)

**گوړاکو** :- (گو/گُ + ړا + کو) (اس، مذ ، ج ــ ان/ گان) (۱) يو قسم چيلم چې

خوارهٔ تمباکو په کښې ځکلې شي (۲) د سرو مچو ګګ.

**ګوړباهې** :- (ګو + ړ + با + هې) (اس، مذ، ج ـــ هي) غولۍ، ګرداب.

**ګوړکه** :- (ګو / ګُ + ړ + کَ) (اس، مو، ج ـ کې) د سپنسو یا د تارونو غونډارے.

**ګوړکۍ** :- (ګ + وَ + ړَ + کَ + ی) (اس، مو) د یو غرئیزې اونې مېوه چې د ګورګرو په شان وي.

**ګوړماچ** :- (ګو/ګُ + ړْ + ما + چ) (اس،جم) یو قسم پخلے چې په کښې صفا کړے لړے کُلمې یو ځاے په دیګچې کښې پخولے شي. قلیه.

**ګوړمار** :- (ګو / ګُ + ړْ + ما + ر) (اس، مذ، ج ـــ ان) ګوړه جوړَوونکے، په ګانړې کښې د ګوړې چکۍ جوړوونکے.

**ګوړنج** :- (ګُو + ړَ + ن + جْ) (اس، مذ، ج ـــ ونه) د دریاب لویه غولۍ، لوے ګرداب.

**ګوړه** :- (ګو / ګُ + ړَ) (اس، مو، ج ـ ړې) مشهور خوارهٔ، د ګنو د پوخ شربت نه جوړې کړې چکۍ. (ف: قند سیاه).

**ګوړي** :- (ګَو + ړِي) (اس، مو) د غنمو یو قسم، چې خوشه او دانه ئې ښهٔ لویه وي.

**ګوړي** :- (ګو / ګُ + ړي) (و ـــ ګوړمار)

**ګوړۍ** :- (ګو + ړَ + ی) (اس، مو) (۱) پاغونده (۲) د تار غونډارے یا ګنجۍ (۳) یو قسم شکره چې د اونو نه حاصلېږي، نباتاتي شکره (۴) ترنجبین (۵) هغه نرم او نازک ازغے (اغزے) چې څاروي ئې خوړے شي (۲) د جوارو د دانو پولۍ، په ورتولو کښې پولۍ شوي جوار (۷) د زوز (ځوز) ګل

**ګوز** :- (ګو + ز) (صف، مذ) ښکلا، ښائست.

**ګوزار** :- (ګو + زا + ر) (و ـــ ګذار)

**ګوزاره** :- (ګو + زا + رَ) (اس، مو، ج ـــ رې) هغه زمکه چې حکومت سرکاري کړې نهٔ وي او خلکو ته ئې د ګزارې دپاره پرې اېښې وي. د زمکې دغې ټوکر ته ګزاره وائي.

**ګوزاوڼ** :- (ګو + زا + ؤ + ڼ) (صف، مذ، مو ـــ ه) (۱) تیز اوږ (۲) وېرندوکے، بزدل، بې زړهٔ.

**ګوز موز** :- (ګُو + زْ + مو + زْ) (اس، مذ) هغه سړے چې چا سره خبرې نهٔ کوي. ګپ نهٔ لګوي. او د زړهٔ حال چاته نهٔ وائي. کم ګو، غلے غزے. غوز مز.

**ګوزن** :- (ګُو + ز + نْ) (اس، مذ، ج ـــ ونه) فالج، د مشهور مرض نوم دے. چې د بدن کوم عضو، لاس، پښې وغېره بېکاره شي او ځینې وخت ربړدي هم.

**ګوزنډو** :- (ګو + ز + نْ + ډو) (اس، مذ) وړوکے ګونګټ، غوزاړے.

**ګوزنۍ** :- (ګُو + زَ + نَ + ی) د "ګوزنے" تانیث دے.

**ګوزنے** :- (ګو + زَ + نَے) (اس، مذ، ج ـــ ني) فالج وهلے، د ګوزن په مرض اخته.

**ګوزوے** :- (ګُو + زْ + وَے) (اس، مذ، ج ـــ وي) د قلبي غویاے.

**ګوزه** :- (ګَ + وَ + زَ) + اس، مو، ج ـــ زې) د ګاوز تانیث دے.

**ګوزۍ** :- (ګُو + زَ + ی) (اس، مو) نخۍ، تاؤ کړې سوتلۍ، ځنۍ (چې غښتلې شوې وي).

**ګوسره** :- (ګو + سْ + رَ) (اس، مو، ج ـــ رې) په څټ باندې سُوک یا څپېړه. (ف: پس ګردن).

**ګوسړې** :- (ګو + سْ + ړې) (۱) د "ګوسره" جمع ده (۲) د "ګوسره" مجروري وغېره شکل چې مغیره تورو سره راځي.

**ګوسنډل** :- (ګو + سَ + نْ + ډَ + لْ) (مص) هېرول، په غفلت سره له خیاله اېستل، ناګمانه کول. نظر انداز کول، غړنده تېرېدل، اغماض کول.

**ګوسنډے** :- (ګو + سَ + نْ + ډَے) (اس، مذ، ج ـ ډي) تغافل، اغماض.

**ګوسنه** :- (ګو + س + ن + ه) (اس، مو) د مار یو قسم، کورمار، یو قسم غټ مار.

**ګوسه** :- (ګُو + سَ) (اس، مو، ج ـــ سې) د ګله (ګیله) تابع لفظ دے. د تاکید معنیٰ ورکوي. ګله ګوسه.

**ګوسه** :- (ګُو + سَ) (اس، مو، ج ـ سې) لوے ناهواره کاڼے، کرکنډه.

**ګوسي** :- (ګُو + سي) (اس، مذ) یو قسم خوند ناکه غرئیزه سبزي ده.

**ګوش** :- (ګو + ش) (ف، اس، مذ) غوږ

ـــ **مال** :- (ـــ ما + ل) (ف تر، اس، مذ، ج ـ ونه) غوږ تاوؤنه، زورنه، تادیب، سزا.

ـــ **و هوش** :- (ـــ (شو) هـ + و + ش) توجه، اورېدنه.

ګوش او هوش ئې هر ګز نهٔ وي
د مظلـــــومو پـــــــه ژړا (خوشحال خان)

**ګوش** :- (ګو + ش) (اس، جم) یو قسم واښهٔ، توربخن او غوړ.

ګوشاړه :- (ګو + شا + ړَ) (اس، مو، ج ـ ړې) ځنګلي غوا.

**ګوشپال** :- (ګو + ش + پا + ل) (اس، مذ) د مارانو یو قسم چې ځنګلي او مهلک دے.

**ګوشواره** :- (ګو + ش + وا + رَ) (ف، اس، مو، ج ـ رې) (۱) لویه قیمتي مرغله (۲) د حساب کتاب خلاصه او جمع (میزان).

**ګوشه** :- (ګو + شَ) (ف، اس، مو، ج ـ شې) ګوټ، ګُټ، زاویه.

ـــ **نشین** :- (ـــ نَ + شي + ن) (ف تر، اس/صف، مذ، ج ـ ان، مو ـ ه) په ګُټ کښې کښېناستونکے، په ګټ کښې ناست، په اعتکاف کښې، معتکف، ځان له، تنها، یوازې.

**ګوشي** :- (ګو + شِي) (اس، مذ) محصول، د څاروو محصول.

ـــ **اخیستل / اغیستل** :- محصول اخیستل (د څاروو) د څاروو حېواناتو محصول وصولول.

**ګوشي** :- (ګو + شِي) (صف) په ګُټ کښې (ناست) یوازې تنها، ګوښے.

**ګوشین** :- (ګو + شِي + ن) (صف) د شین تاکیدي توره دے چې شین سره یو ځاے راځي. یعنې شین ګوشین. ډېر شین، تک شین.

**شین ـــ** :- (شِي + نْ ـــ) (صف) ډېر شین، تک شین. لکه: د وېړې نه /څخه شین ګوشین شهٔ.

**ګوښاره** :- (ګُو + خا/ شا + رَ) (صف، مو، ج ـ رې) هغه څیز چې ګوټونه لري. څنډیځ، څنډیز، ضلعو واله، شکل یا څېر.

**ګوښت** :- (ګُ + خْ /شْ + ت) (اس، مذ، ج ـــ ونه) ګُفت، وېنا، د اولیاؤ وېنا.

**ګوښه** :- (ګُو / ګُ + خَ /شَ) (اس، مو، ج ـــ ښې) (۱) ګوټ، ګټ، ګوشه (۲) ځان له، تنها، یوازې.

ـــ **کنار** :- (ـــ ک + نا + ر) (فپ، تر، اس ظ) د دواړو لفظونو یوه معنیٰ ده. دویم لفظ د تاکید او زور دپاره راوستے شي. بالکل یو ګوټ ته، یوې څنډې ته. بالکل جدا او لرې.

ـــ **کنار کېدل** :- یوې ډډې ته کېدل، (له خلکو) لرې او جدا اوسېدل ګډون نهٔ کول، په څنډه کېدل.

ـــ **کېدل** :- یو ګوټ / ګُټ ته کېدل، یو خوا ته کېدل، ځان له کېدل یوازې کېدل، یکه کېدل، ګوشه نشین کېدل، په خلوت کښې کښېناستل، اعتکاف کول.

ـــ **ګوښه ګرزېدل** :- ځان له جدا جدا ګرځېدل، لرې لرې ګرځېدل،

ګږون نهٔ کول.

ـــــ **ګير** :- (ـــــ ګي + ر) (ف پ تر ، صف، مذ ، مو ـــــ ه) ګوښه نيوونکے ، ګوښه نيولے ، په ګټ کښې ناست.

ـــــ **نشين** :- (ـــــ نَ + شي + ن) (فپ ، تر،صف، اس،مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) په ګوټ کښې ناست ، ګوښه نيولے ، ځان له ، جدا ، تنها ، په اعتکاف کښې ناست.

ـــــ **نشيني** :- (ـــــ نَ + شي + ني) (فپ، تر، اس، مو) (۱) ګټ کښې کښېناستنه ، ځان له جدا کښېناستنه.

**ځان ـــــ کول** :- (د) ز + ن ـــــ) تنهائي اختيارول ، ځان له خلکو جدا کول ، ځان يوې ډډې ته کول ، تعلق شلول.

**ګوښے** :- (ګو + خے/شے) (اس ، ظر) يو ګوټ ته ، يوې ډډې ته ، ځانله ، تنها ، يوازې.

ـــــ **ګوښے** :- (ـــــ ګو + خَے/شے) (حرف) يو يو ، جدا جدا ، ځان ځان (ته) قسم قسم ، رنګ رنګ.

ـــــ **ګوښے کول** :- جدا جدا کول ، د يو بل نه بيلبدل.

ـــــ **ګوښے کېدل** :- جدا جدا کېدل ، د يو بل نه بېلېدل.

**ګوښېدل** :- (ګو/ ګُ + ښے + د + لْ) (و ـ ګوښه کېدل يا ګوښے کېدل)

**ګوګ** :- (ګو ګ) (صف، مو ـــ ه) په مېنځ کښې خالي ، ډډ.

**ګوګا** :- (ګو+ګا) (اس صوت) (۱) غوغا ، شور زوږ (۲) د چوړيانو پېر.

**ګوګار** :- (ګو + ګا + ر) (اس، مذ) د لوبو لوے هړوکے.

**ګوګرد** :- (ګو + ګ + رْ + د) (اس، جم) (۱) ګندهک ، ګوګړ ، (۲) د اور لګولو تيلے ، اور لګيت.

ـــــ **سازي** :- (ـــــ سا + زي) (ف تر ، اس، مو) (۱) ګوګړ جوړول ګندهک جوړول (۲) د اور لګولو تيلي جوړول ، ماچس جوړول.

**ګوګرے** :- (ګُو + ګ + رَے) (اس، مذ ، ج ـــ ري) يو قسم ګل دے. د مهرې مرجان اوږ د سپينو زرو نه جوړولے شي. او زنانه ئې په تندي زوړندوي.

**ګوګړ** :- (ګُو + ګ + ړْ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) يو غرئيز سور ګل دے چې د غاټول په شان.

**ګوګړ** :- (ګُو + ګ + ړْ) (اس ، جم) ګندهک ، مشهوره کاني ماده.

**ګوګړو** :- (ګُو +ګ +ړو) د ګوګړ (جمع) مجروري شکل چې مغيره تورو سره راځي.

**د ـــــ تېزاب** :- (د ـــــ تې + زا+ ب) د ګندهکو تېزاب.

**د ـــــ کان** :- (دَ ـــــ کال + ن) د ګندهکو کان ، هغه درنګ چې ګوګړ په ښې پيدا کېږي.

**ګوګړه** :- (ګو + ګ + ړَ) (اس، مو ، ج ـــ ړې) ورتې کړې چنې.

**ګوګل** :- (ګو + ګَ + لْ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) د سينې صندوق ، ټټر

يو چې ؤ هغه خو يو وړ دلبرانو
دويم نهٔ لـــرم دننه په ګوګل زړهٔ (علي خان)

(۲) مجازاً : زړهٔ ته هم وائي.

**ګوګل** :- (ګُو+ ګ+ لْ) د ''ګوګړ'' بدل شکل.

**ګوګلے** :- (ګو + ګ + لے) (اس، مذ ، ج ـــ لي) د دوو دېوالونو په مېنځ کښې چې ځاے چت کړي. نو يو لوے طاخ شان جوړ شي. په دې کښې اسبابونه وغېره کښېږدي. (پېښور ژبه کښې ورته ''دور'' وائي)

**ګوګلے** :- (ګو + ګ + لَے) (اس، مذ ، ج ـــ لي/ان) خالي ، ډډ.

**ګوګن** :- (ګو + ګ + نْ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) ګوګ واله ، ډډ ، په مېنځ کښې خالي ، تش مېنځے.

ـــــ **والے** :- (ـــــ وا + لَے) (اس، مذ ، ج ـــ لي) ډډوالے ، په مېنځ کښې تش والے.

**ګوګو** :- (ګُ/ ګُو + ګُو) (اس ، مذ) سائرن ، هغه اله چې ډېر تېز او لرې رسېدونکے اواز پيدا کوي. عموماً د خطرې په وخت يا د روژه ماتي يا د پېشمني د وخت ښودلو دپاره غږولے شي.

**ګوګو** :- (ګُو + ګُو) (اس، مذ ، ج ـــ ګان) احمق ، کم عقل ، شوده.

**ګوګوشتکه** :- (ګُو + ګُو+ش +تَ + کَ) (اس، مو ج ـ کې) د فاخته ؤ يو قسم چې په اوړي کښې د ''ګو ګو ش تُو'' اوازونه کوي. (فاخته ؤ يو بل قسم دے چې د ''ګوړ ګوړ'' اواز کوي. هغې ته هم د اواز په نسبت سره ګوړ ګوړه يا ګوړ ګوړي او يا ګوګړ وائي.)

**ګوګوشتو** :- (ګُو + ګُو + ش + تُو) (اس صوت) (۱) د ګوګوشتکې اواز ، د فاخته اواز (۲) ګوګوشتکه (۳) د خاورو جوړه شوې يو اله چې پوکے ورکړې نو اواز کوي. عموماً به دا خانه بدوشو چنګړيانو جوړولو د سرې ډوډۍ په ټکړه به ئې خرڅولو. د دې نه متل جوړ شۀ چې څۀ ګوګوشتو خو نۀ دے چې پرې سره ډوډۍ به وشي.

**ګوګول** :- (ګو + ګَ + ؤ + لْ) (مص) ډډَول ، په مېنځ کښې خالي کول.

**ګوګۍ** :- (ګو + ګَ + ۍ) (هـ ، اس ، مو) ککوړے ، وړه شان ډوډۍ عموماً کوم لږ شان اوړهٔ چې په تنور کښې د ډوډيو د لګولو نه پس پاتې شي. نو ککوړے شان ترې جوړ کړي او په تنور کښې ئې پوخ کړي. ګوګۍ بللے شي.

**ګوګے** :- (ګو + ګَے) (و ـــ ګوګلے)

**ګوګېدل** :- (ګو + ګے + د + لْ) (مص) ډډېدل ، په مېنځ کښې خالي کېدل، مېنځ تشېدل ، کاواکه کېدل.

**ګول** (۱) :- (ګو + ل) (اس، مذ) هغه غويا‌ے چې د غوبل په وخت په ځاے ولاړ وي. او ورسره ترلي نور غوايان د هغهٔ د چاپېره ګرځي. د مېنځ غواے چې ډېر لږ مشقت کوي.

**ګول** (۲) :- (ګو + ل) (صف، مذ) (۱) کم عقل ، ساده ، بېوقوف

مـــا چـــې نظـــر وکړ په ذرات په موجودات
ګول په جهان راغلم ترېنه ګول درومم هېهات (خوشحال خان)

(۲) فريب ، مکر ، دوکه.

ـــــ **کېدل** :- احمق کېدل ، بېوقوف جوړېدل ، ځان کم عقل يا ساده کېدل.

**ګول** (۳) :- (ګو + ل) (صف) حېران ، حېرت زده.

**ګول** (۴) :- (ګو + ل) (اس ، مذ) (۱) قربان ، صدقه، ځار (۲) ''قربان'' سره د تاکيد دپاره. لکه : ګول قربان وئېل.

ـــــ **ګول** :- د مينې کلمات دي چې مېندې يا نورې مشرانې ښځې خپلو بچو ته وائي. يعنې له تا صدقه شم ، له تا قربان شم.

**ګول** (۵) :- (ګو + ل) (انګ ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) د فټ بال ، هاکي يا داسې نورو لوبو کښې يو خاص مقرر شوے ځاے چې فټ بال يا غونډسکې د دغې مقرر ځاے کښې ورتېروي. (۲) د فټ بال يا غونډسکې ددغې مقرره نخښو تر مېنځه تېرېدنه. دې ته يو ''ګول'' وائي. د لوبې په اخر کښې کتے شي چې چا ډېر ګولونه کړي. زياتو ګولونو واله وګټې او د بل طرف لوبغاړي بېلې.

**ګول** (۶) :- (ګو + ل) (هـ ، صف) غونډ ، د دائرې د شکل.

ـــــ **کمره** :- (ـــــ کَ + مْ + رَ) (اس، مو ، ج ـــ رې) (۱) په بنګله کښې يو خاص کمره چې غونډه وي. د ناستې کوټه (۲) (بازاري) کنه ، هلک ، پازي ، اغلام.

ـــــ **مول** :- (ـــــ مو + ل) (هـ ، صف) داسې خبره يا جواب چې صفا او واضحه نۀ وي. چې صحيح مطلب ئې نۀ خېژي. لکه : ګول مول جواب

ئې راکړو.

**بستره ـــــ کول** :- (۱) بستره غونډول ، د يو ځاے نه تلل ، سفر کول (۲) د نوکرۍ نه وتل.

**گول** (۷) :- (گو + ل) (هـ ، صف ، مذ ، موــه) گډ ، خلط (غالباً چې د هندي "گهولنا" سره تعلق لري).

ـــــ **گول** :- ورگډول ، ملاوَوَل ، خلط کول.

**گولگن** :- (گو + لَ + گ + نْ) (اس، مذ) يو قسم وابښهٔ (علف) چې د څاروو ښهٔ خوراکه ده. چې سپين گل کوي. غريب خوار خلک ئې خوراک له پخوي.

**گول مال** :- (گو + ل + ما + ل) (صف ، مذ) گډ وډ ، لاندې باندې ، مجازاً : غبن ، خيانت ، لکه گول مال ئې کړ ، يعني په غلا ئې وخوړ. خيانت ئې په کښې اوکړو.

**گولو** :- (گو + لو) (۱) د گولۍ (جمع) مجروري شکل چې د مغيره تورو سره راځي. لکه د گولو بوتل ، د گولو اثر. (۲) (گولۍ بله معنٰی کښې) د ټوپکو د گولو باران.

**د ـــــ باران (وريدل)** :- د باران د څاڅکو په شان گولۍ وريدل ، ډېرې زياتې گولۍ وريدل.

**گولول** :- (گُو + لَ + وُ + لْ) (مص) شر او فتنه برپا کول ، د راز يا پټه خبره ښکاره کول.

**گوله** (۱) :- (گو + لَ) (اس، مذ ، ج ـــ لې) غړې ، نوړۍ ، لقمه.

ـــــ **تر ستوني نه تېرېدل** :- نمړۍ / نوړې د مرۍ نه / څخه نهٔ ښکته کېدل (د ډېر غم يا د بې حده شوم سړي په حقله وئيلے شي).

**گوله** (۲) :- (گو + لَ) (اس، مذ ، ج ـــ لې) د توپې غټه او لويه گولۍ.

ـــــ **باروت** :- (ـــــ با + رُو + ت)

ـــــ **بارود** :- (ـــــ با + رُو + د) (فپ ، تر ، اس، جم) د توپې سامان ، گولې او بارود (دارو) مجازاً د جنگ يا د مقابلې ساز و سامان.

ـــــ **بارود خلاصېدل** :- په جنگ د مقابلې طاقت نهٔ پاتې کېدل ، ميگزين ختمېدل مجازاً د بحث دپاره دلائل او حجتونه نهٔ پاتې کېدل.

ـــــ **باري** :- (ـــــ با + ري) (ف تر ، اس ، مو) (۱) د توپو په خلاصولو په دښمن باندې گولې ورونه (۲) د جنگي هوائي يا د اوبو د جهازونو نه (په دښمن) گولې ورونه.

**گوله** :- (گو + لَ) (اس، مذ ، ج ـــ لې) د اوسپنې غټه او درنه غونډاره چې لوبغاړې ئې د مقابلې دپاره لرې غورزوي.

**گولي** :- (گو + لِي) (اس، مذ ، ج ـــ ان) د فټ بال ، هاکۍ وغېره لوبو کښې هغه لوبغاړے څوک چې په گول کښې ولاړ اوسي. او فټ بال يا غونډسکې په گول (مقرره نخښو تر مېنځه) کښې تېرېدلو ته نهٔ پرېږدي. گول کيپر.

**گولې** :- (گو + لې) (۱) د "گوله" جمع ده (۲) د "گوله" مجروري شکل چې د مغيره تورو سره راځي.

**گولۍ** (۱) :- (گو + لَ + ی) (اس، مو) د ټوپک مرډکے.

**گولۍ** (۲) :- (گو + لَ + ی) (اس، مو) د دارو وړه شان ټيکۍ چې د کومې نه په اسانه تېرېدے شي.

ـــــ **خوړل** :- (۱) د دارو گولۍ خوړل (۲) د ټوپک په گولۍ لگېدل ، په گولۍ زخمي کېدل.

**په ـــــ دې ولگي** :- (پَ ـــ د + وَ + لَ + گي) ښېره ده ، مړ دې شي.

**په ـــــ ئې ووله** :- (۱) د ټوپک په گولۍ ئې ووله ، مړ ئې کړه (۲) د کوم څيز نه د کرکې د اظهار دپاره وئيلے شي. چې پرېږده ئې ، نظر انداز ئې کړه ، ددغه سړي يا څيز ذکر پرېږده ، ورک ئې کړه ، شړق دې پرې ووځي. په شړق ئې ووله.

**گولي پنج** :- (گُو + لِي + پَ + نْ + ج) (اس، مذ ، ج ـــ ان) کني کبر سرطان ، خرچنگ.

**گولېدل** :- (گُو + لې + د + لْ) (مص) فتنه فساد پورته کېدل ، خطرناکه پټه واقعه يا داسې قسم راز څرگندېدل.

**گومامگۍ** :- (گُو + ما + م + گَ + ی) (اس، مو) هغه بوټے چې د شوتلو په فصل کښې پيدا کېږي. او تخم ئې د تخم ملنگان په شان تور وي.

**گومان** :- (گو + ما + ن) (و ـــ گمان)

**گومانړ** :- (گُو + ما + ن + ړْ) (و ـــ گومانړو)

**گومانړو** :- (گُو + ما + ن + ړُو) (اس، مذ) د خرېړو يو قسم.

**گومانړۍ** :- (گو + ما + ن + ړَ + ی) (و ـــ گومانړو)

**گومبت** :- (گُو + م + بَ + تْ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) گنبد.

**گومبورے** :- (گو + م + بو + رَے) (اس، مذ ، ج ـــ ري) بارخو ، رخسار (گومبورے هم ليکلے شي).

**گومبۍ** :- (گُو/گُ + م + بَ + ی) (اس، مو) قبه ، گنبت.

**گومگو** :- (گو + مَ + گو) (ف تر ، صف) (۱) پس و پېش ، شک و شبه ، وئيل نهٔ وئيل (۲) ناگفتني (۳) پټ، خفيه.

**گومل** :- (گو + مَ + لْ) (اس، مع) (۱) د پښتونخوا يوه مشهوره دره (۲) کنايةً : جدي ميراث او پدري ملک.

**گومنځ** :- (گو + م + نْ + (د) زْ) (اس، مو ، ج ـــ ځې) ږمنځ ، گمنز ، شانه.

**گومنځے** :- (گُو + م + ن + (د) زَے) (اس، مذ) ځنگلي بوټے ، چې قلمونه ترې جوړولے شي.

**گومنز** :- (گو + م + ن + زْ) (و ـــ گومنځ)

**گومه** :- (گُو + مَ) (صف، مو ، ج ـــ مې) (۱) د "گوم" تانيث دے. (۲) لاحقه هم ده. چې د ورکېدلو معنې ورکوي.

**سر ـــــ** :- (سَ + رْ ـــ) (صف، مو ، ج ـــ مې) هغه ماشوره چې سر ئې ورک وي او نهٔ شي معلومېدے ، هغه معامله چې حل ئې نهٔ بيا مونده کېږي.

**گون** :- (گ + وَ + نْ) يا (گ + وَ + نْ) (اس، مذ) يو غرنيز ازغن / اغزے بوټے دے چې د سوي ځاے د علاج دپاره پکارولے شي.

**گون** :- (گَو + ن) (انگ ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) يو قسم يورپين جامه چې د لنډ قميص او د گگرې درواړو کار ورکوي. (۲) هغه جُبه چې ججان وکيلان ، پرفېسران او ډگري اخستونکي طالب علمان ئې اغوندي.

**گون** :- (گُو + ن) (لاحقه) لاحقه ده. د اعداد نه پس راوستے شي او د "چند" (اُر : گُنا) معنې ورکوي. لکه : درې گون ، لس گونه ، (هـ : گُنَا)

**گون** :- (گُو + نْ) (ف ، صف) رنگ ، گونه ، روش ، طرز ، په مرکباتو کښې استعمالېږي.

**گونا ـــــ** :- (گُو + نا ـــــ) (ف تر ، صف) رنگا رنگ ، قسم قسم ، رنگ په رنگ.

**گونټ** :- (گو + ن + ټ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) د شطرنج او د پچيسۍ مُهره ، گونټه ، گوټه ، گوټ.

**گونټه** :- (گو + ن + ټَ) (اس، مو ، ج ـــ ټې) د شطرنج وغېره لوبې مهره ، گوټه.

ـــــ **سورېدل** :- داؤ لگېدل ، گونټه د گټې کور ته راتلل ، کاميابېدل.

**گونج** :- (گو /گُ + ن + ج) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ماله ، هغه تخته چې قلبې پسې ئې وترې او د سادين لوټې وغېره پرې هواروي.

**ګونج** :- (ګُو + نْ + ج) (هـ ، اس، مذ) (۱) هغه اواز چې په کوهي یا په غرۀ کښې په بېرته راګرځي - چې څۀ ووئیلے شي هم هغه واورېدلے شي - باز ګشت اواز ، انګې (۲) غړمبا ، (د زمري وغېره) (۳) ګونځه ، ګړونجه.

**ګونجکے** :- (ګو+ ن + جَ + کَے) (اس صوت) (د ''ګونجے'' تصغیر دے) د ګونج اواز ، بېرته راستنېدونکے اواز.

**ګونجل** :- (ګُو + ن + ج + لْ) (مص) (۱) د ګونج په شان اواز په بېرته راتلل (۲) غړمبېدل (د زمري وغېره).

**ګونجلک** :- (ګو/ ګُ +ن + جَ + لَ +کْ) (صف، مذ ،مو ـــ ه) (۱) راتاو شوے ،راغونډ شوے (۲) الوول ، په خپله کښې نښتے ، پیچیده ، ګنجلک.

ـــ **کول** :- (۱) راتاولول ، راغونډول ، (د یخنۍ نه) راګوټي کول (۲) الوول کول ، پیچیده کول ، نښلول.

**ګونجنے** :- (ګُو + ن + جَ + نَے) (اس، مذ، ج ـــ نِي) د لوښو کوټه یا المارۍ وغېره ، د لوښو سټور.

**ګونجه** :- (ګو+ن + جَ) (اس، مو ،ج ـ جې) ګړونجه ، شکن ، چِین ، ګونځه.

**ګونجے** :- (ګُو + ن + جَے) (و ـــ ګنجے) د ګونج اواز ، بېرته راستنېدونکے اواز ، انګې.

**ګونجے** :- (ګُو + ن + جے) (۱) د ''ګونجه'' جمع ده (۲) د ''ګونجه'' مجروري وغېره شکل-چې د مغیره تورو سره راځي.

**ګونجېدل** :- (ګُو +ن + جے + د + لْ) (مص) (۱) ګړونجې کېدل ، ګونجې کېدل ، ګونځېدل (۲) د اواز (په غرۀ ، کوهي یا په ګنبه کښې) بېرته راستنېدل.

**ګونځه** :- (ګُو + ن (د) زَ) (اس، مو ، ج ـ ځې) (و ـ ګونجه)

**ګوند** :- (ګ + وَ + نْ + د) یا (ګ + ؤ + نْ + د) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) ډله ، ټولے (۲) پره ، جنبه.

ـــ **بازي** :- (ـــ با + زِي) د خپلې ډلې پره یا طرفداري ، پره جنبه ، ګند بازي.

**ګوند** :- (ګو + ن + دْ) (ه ، اس ، جم) سلېښ ، سرېښ ، هغه سلېښ کوم چې د چیړ نه جوړولے شي.

**ګوندرے** :-(ګو +ن + د + رَے) (اس، مذ ،ج ـ رِي) پره، جمعیت، ډله.

**ګونده** :- (ګَ + وَ + نْ + دَ) (اس، مو ، ج ـــ دې) جوله ، غوندې.

**ګونده** :- (ګُو + ن + دَ) (اس، مذ) پوخ او تجربه کار سړے.

**ګونده** :- (ګو + نْ + د) (صف) سپین روبے ، اعتباري سړے، ثقه.

**ګرونده** :- (ګو + ن + دَ) (صف) ګوندي مار، پره جنبه کوونکے.

**ګوندې** :- (ګُو / ګُ + نْ + دِ) (حرف) شاید ، کېدے شي ، ممکنه ده احتمال لري-لکه : ګوندې هغه زما خبره ومني ، ګُندے.

**ګوندي** :- (ګُ + نْ + دِي) یا (ګ + ؤ + نْ + دي) (اس، مذ ، ج ـ ان) پره شړونکے، د خپلې ډلې حمایتي ، د خپلې پارټۍ طرفداري کوونکے ، پره جنبه کوونکے ، ګُندي.

**ګوندے** :- (ګُو +ن + دَے) (اس، مذ ،ج ـ دي) غوندې ، لویه بوجۍ چې په کښې غله ږدي - خصوصاً هغه غوندې چې دوه پلوه لري - لویه برغده بوره یا بوجۍ چې په څاروي بارولے شي-ګندے.

**ګونړ** :- (ګو + ن + ړ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) غولۍ ، ګرداب.

**ګونړو** :- (ګو + ن + ړو) د ''ګوندے'' (جمع) مجروري شکل چې د مغیره تورو سره راځي.

**په ـــ کېدل** :- ګوډې په زمکه لګول،په ګوډو کښېناستل-زنګنونه ماتول.

**ګونډه** :- (ګو + نْ + ډَ) (اس،مو ، ج ـــ ډي) ګوډه ، زنګون.

ـــ **کېدل** :- ګونډې لګول ، وسله کښېښودل ، ماتې منل.

**ګونډه** :- (ګو + ن + ډَ) (اس، مو) یو قسم ګیاه دړه چې اوږدې اوږدې پاڼې لري.

**ګونډې** :- (ګو + ن + ډې) (۱) د ''ګونډه'' جمع ده (۲) د ''ګونډه'' مجروري شکل چې د مغیره تورو سره راځي.

ـــ **ماتول** :- (۱) زنګنونه ماتول ، په ګوډو کېدل (۲) (ورته) کوم کار ته په استقامت سره اړمېدل.

ـــ **ورکول** :- (۱) په ګونډو/ ګوډو باندې وهل ، زنګنونو باندې په ګېډه ګېډه کښې وهل - مجازاً په لتو وهل (۲) بازاري : مجامعت ته اماده کېدل ، زنګنونه ورکول.

ـــ **وهل** :- په ګونټو کښېناستل ، ګوډې لګول ، په ګوډو کښېناستل ، زنګنونه لګول.

ـــ **وهل** ، ورته :- کار ته تیارېدل ، کار ته اړمېدل (کارته) پوره اطمینان سره کښېناستل.

**ګونډے** :- (ګُو + نْ + ډَے) (اس، مذ ، ج ـ ډِي) (۱) د غنمو هغه خوشے چې پوره نۀوي غوبل شوے.(۲) مجازاً : حسد ، کینه.

ـــ **کول** :- (۱) یو ځل غوبل شوي (د غنمو) خوشے دوباره غوبل کول ، ګونډے مال کول.(۲) مجازاً حسد کول ، کینه کول.

**ګونډے** :- (ګو + ن +ډَے) (اس، مذ ، ج ـــ ډِي) هغه اوښ چې زنګون یعنې پښه ئې تړلې شوې وي.

**ګونډېل** :- (ګو + نَ + ډے + ل) (صف) د مست یا د قوتناک اوښ دواړه زنګونو نه په یوه خاص طریقه (مرۍ سره) تړل.

**ګونډیمال** :- (ګُو + ن + ډِي ـ ما + ل) (اس، مذ) د غنمو هغه خوشے چې د اول ځل غوبل نه پاتې شي-یا پوره غوبل نۀ شي-سره دوباره غوبل کول

**ګونړ** :- (ګُو+ نَ + رْ) (اس، مذ) یو قسم سبزي ده چې خوړے شي.

**ګونګ** :- (ګُو + نْ + ګ) (صف، مذ ، مو ـــ ه) (۱) ګونګے ، چې خبرې نۀ شي کولے (۲) چپ ، خاموشه.

ـــ **کېدل** :- چپ کېدل ، غلے کېدل ، خبرې نۀ کول.

**ګونګټ** :- (ګُو + ن + ګ + ټْ) (اس، مذ ، ج ـ ان) (۱) مشهوره حشره، چې تک تور رنګ لري او په سوټو وغېره ګندګۍ ګرځي او غونډاري ترې جوړوي-مرغټانه ، غوزاړے (۲) مجازاً : تک تور مندرے سړے.

**ګونګټۍ** :- (ګُو + ن + ګَ + ټَ + ی) (اس، مو) یو قسم حشره ده ، تک سور رنګ لري-او د بوټو پاڼې خوري.

**ګونګرو** :- (ګُو / ګُ + ن + ګ + رُو) (هـ ، اس، مذ ، ج ـ ګان) ګینړ ګینړے ، د خاص فلز نه جوړ شوے هغه وړوکے شان څیز چې مېنځ ئې خالي وي او په خالي ځاے کښې ئې وړوکے شان کاڼے وغېره پروت وي - چې دا خوزي نو د کاڼي سره په لګېدو اواز کوي-عموماً خلک ئې د څاروو په غاړه کښې اچوي-(هـ-ګهنګرو).

**ګونګرۍ** :- (ګُو + نْ + ګ + رَ + ی) (اس ، مو) پازېب ، پائله.

**ګونګړو** :- (ګُو + ن + ګ / ګ + رو) (اس، مذ) ترټرۍ ژبه / جبه-د ګونګي سړي په شان ورو ورو ژبې لاندې خبرې ، نښتې ژبه / جبه.

**ګونګړي** :- (ګو / ګُ + ن + ګْ + ړِي) (اس، جم) په اوبو کښې یشولې شوې چڼې چې بیا پرې مالګه مصالحه اچولے او خوړے شي - د جوارو او غنمو نه هم پخولے شي.

ـــ **خرڅول** :- (۱) یشېدلې چڼې خرڅول (۲) مجازاً ادنی او سپک کار کول.

**په خولۀ کښې ـــ بودل** :- مجازاً خبرې نۀ کول ، جواب نۀ ورکول ، عموماً

د نفي په طور استعمالېږي. لکه : په خولهٔ کښې دې ګونګړي خو نهٔ دي.

**ګونګړے** :- (ګُو + ن + ګ / ګ + ړَے) (صف، مذ، مو ــ ئي) تړتړي نښتې ژبه / جبه.

**ګونګړے** :- (ګُو + ن + ګ + ړَے) (و ــ ګينګړے)

**ګونګو** :- (ګُو + ن + ګُو) (اس، مذ) ديو بوټي نوم دے چې سپين بخنې شنې پاڼې لري. د خشاک په طور استعمالېږي.

**ګونګو** :- (ګو + ن + ګُو) (اس، جم) ګنګو، زعفران.

**ګونګوځے** :- (ګو + ن + ګُو + (ت) سے) (و ــ ګنګوسے)

**ګونګور** :- (ګو + ن + ګو + ر) (اس، مذ) يو قسم غرئيز بوټے دے چې زېړ رنګ ترې حاصلېږي.

**ګونګورے** :- (ګُو + ن + ګو + رَے) (اس، مذ، ج ــ ري) د انګورو خوشه

**ګونګوړه** :- (ګو + ن + ګو + ړَ) (و ــ ګانګوړه)

**ګونګوړے** :- (ګو / ګُ + ن + ګو + رَے) (و ــ وښکالے)

**ګونګوسه** :- (ګُو + ن + ګُو + سَ) (و ــ ګنګوسه)

**ګونګوسے** :- (ګُو + ن + ګو + سَے) (اس، مذ، ج ــ سِي) (۱) افواه انګازه (۲) سرګوشي، پس پسارے، پس پسے.

**ګونګو ماښام** :- (ګُو + ن + ګو + ما + خا/شا + م) (اس، ظر) د ماښام وخت چې لا پوره تيارهٔ شوې نهٔ وي. ګنګو ماښام.

**ګونګه** :- (ګُو + ن + ګَ) (اس، مو) د يو بوټي نوم دے چې لوګے ئې د سترګو د مرض دپاره ښهٔ ګڼلے شي.

**ګونګه** :- (ګُو + ن + ګَ) (صف، مو) د "ګونګ" تانيث دے.

**ــــ پنګه** :- (ــــ پَ + ن + ګَ) (اس، مو، ج ــ ې ــ ې) هغه پنګه يا سرمايه کومه چې بنده پرته وي او تجارت وغېره کار کښې نهٔ وي لګولې شوې.

**ــــ روږه** :- (ــــ رو + ژَ)

**ــــ روجه** :- (ــــ رو + جَ) (ف تر، اس، مو، ج ــ ژې، جې) د خبرو نهٔ کولو روجه / روږه، د چپ پاتې کېدو پابندي.

**ــــ روجه / روږه نيول** :- د چپ پاتې کېدلو نيت کول. په خبرو بندېز لګونه.

**ګونګے** :- (ګُو + ن + ګَے) (اس، مذ، ج ــ ان) مشهور مارغهٔ، چې د شپې الوزي او سپېرهٔ ګڼلے شي بوم. (اُر : اُلّو)

ګونګے :- (ګُو + ن + ګَے) (صف، مذ، ج ــ ان) ګونګ، هغه سړے چې خبرې نهٔ شي کولے، ګونګا.

**ګونګے** :- (ګُو + ن + ګَے) (اس، مذ، ج ــ ګي) د هلکانو يوه لوبه ده چې په کښې ټول چپ کښېني، چې د چا د خولې نه څهٔ خبره اووزي نو هغه ډبولے شي. يا پرې څهٔ جرم کښېښودے شي.

**ــــ اچول** :- (۱) د ګونګي په لوبه کښې، د يو کس اواز ورکول، چې ګونګے دے نو د دغې نه پس هېڅوک خبره نهٔ کوي. (۲) مجازاً ديو څو کسانو چپ کښېناستل او په خپله کښې خبرې نهٔ کول، نو بل ورته وائي ګونګے خو نهٔ دے اچولے.

**ــــ توب** :- (ــــ تو + ب) د ګونګي کېدلو حالت، ګونګے والے.

**ــــ ټاس** :- (ــــ ټا + س) (پ تر، اس، مذ) هغه ګونګے (مشهور مارغهٔ، بوم) چې د سر بانهٔ ئې د پټکي په شان ښکاري. غټ سرے ګونګے.

**ګونګے** :- (ګُو + ن + ګَے) (اس، مذ، ج ــ ګي) د انګورو خوشه.

**ګونه** :- (ګُو + نَ) (اس، مو، ج ــ نې) (۱) رنګ (۲) شکل و شباهت.

**ــــ بده کېدل** :- رنګ خرابېدل، د مخ سرخي نهٔ پاتې کېدل، بدرنګ کېدل.

**ــــ زيړېدل** :- (۱) رنګ زيړ کېدل، رنګ تبنتېدل (۲) خوفزده کېدل، وېرې اخستل، (۳) د ناجوړتيا له کبله رنګ زيړېدل.

**ــــ وهلے** :- (ــــ وَ + هـ + (ل) لَے) (اس، مف، مذ، ج ــ لي) هغه چې رنګ ئې خراب شوے وي. بد رنګه، زيړ مخے.

**ګونی** :- (ګُو + نَ + ی) (اس، مو) (۱) لويه بوجۍ (۲) هغه بوجۍ چې په مېنځ کښې ګنډلې شوې وي. او دوه برخې شوې وي.

**ګونے** :- (ګو + نَے) (اس، مذ، ج ــ ني) بوجۍ، بوړۍ، (د اوړو وغېره).

**ګونے** :- (ګو + نَے) (اس، مذ) هغه د تار په شان نرۍ څرمن چې د پېزار شاته د ډول دپاره ګنډلے شي.

**ګونيه** :- (ګُو + ن + يَ) (و ــ ګونے)

**ګوڼ** :- (و ــــ ګوڼے)

زما زړهٔ دې کړ غلبېل د بېلتون ګوڼه
پــــه ژړا ژړا مې ټــوله شپه کړه روڼه (عبدالعظيم)

**ګوڼے** :- (ګُو + ڼ + نَے) (اس، مذ، ج ــ ني) (۱) يو قسم چينجے چې په غله کښې پيدا شي او هغه خرابه کړي (۲) يو قسم چينجے چې لرګو کښې پيدا شي او لرګے وخوري او سورے سورے ئې کړي.

**ــــ لګېدل** :- (۱) په غله کښې چينجي پيدا کېدل او هغه خرابول. (۲) مجازاً په غم يا په بله کومه وجه د بني ادم صحت خرابېدل (۳) يو څيز په کمي راتلل.

**ګوواټه** :- (ګُو + وا + ټَ) (اس، مو، ج ــ ټې) د سپياکو مخروطي ټوپ، چې سپياکې په کښې د يو بل دپاسه په خاص طريقه داسې کښېږدي چې مخروطيي شکل ترې جوړ شي.

**ګوه** :- (ګُو + ه) (اس، مذ، ج ــ ونه) د مرۍ هډوکے، ګروه.

**ګوه** :- (ګو + ه) (ه، اس) د څمڅرې د قسم يو ځناور، سوسمار.

**ګوهار** :- (ګو + ها + ر) (اس، مو) د غواؤ سخوو وغېره ګله، چې عموماً د کلي د هر کور نه په يو مېدان کښې سحر مال جمع شي او ګوارچي ئې صحرا ته د څر دپاره بوځي. او ماښام ئې کلي ته راولي. په دې کښې کله کله مېښې کټاکټې هم شامل وي.

**ګوهر** :- (ګو + هَ + رْ) (ف، اس، مذ، ج ــ ونه) (۱) مرغلره، غمے (۲) د نارنه او زنانهٔ په نومونو کښې استعمالېږي.

**ګوئے** :- (ګُو + ئے) (ف، اس) خبره، ګفت، عموماً ګفت سره يو ځاے راځي. يعني ګفت و ګو (ئے).

**ــــ مګوئے** :- (ــــ مَ + ګو + ئے) (صف) د وئيلو او د نهٔ وئيلو. ګفتني او نا ګفتني، ښې او بدې خبرې. عموماً مراد ترې د نهٔ وئيلو لائقې خبرې وي.

مــا خــوشحال لــه ډېرو لړ دي څهٔ وئيلي
له دې حاله ګوئے مګوئے وئيل بې شمار دي (خوشحال خان)

(۲) حېران، ششدر، لکه : د ګوئے مګوئے په حالت کښې، يعني چې په دوو کښې حېران وي.

**ګوے** :- (ګو + ئے) (اس، مذ) هغه غويا ے چې د قلبې وغېره په کار کښې درست وي.

**ګوے** :- (ګ + وَے) (اس، مذ، ج ــ ي) وړوکے کوتل.

**ګوے** :- (ګُو + ئے) (ف، اس، مذ) پندوس، غونډوسکه

همېشه به د حــرص په مېدان غورزي
په مېدان کښې لکه ګوئے هسې رقاص (خواجه محمد)

**ــــ وړل**، له مېدانه :- چوګان په لوبه کښې پندوس ځاے ته رسول، مجازاً : ګټه کول. لوبه ګټل. مقابله ګټل. کټور کېدل، برے موندل.

**ګويا** :- (ګو + يا) (ف، اس) خبرې کوونکے.

**ــــ کېدل** :- وئيل، وينا کول، خبرې کول

ګونګے ښهٔ دے چې بې کام و بې زبان وي
نــهٔ چــې ژبــه شي پــه بــد وئيــل ګويا (رحمان بابا)

**ګویا** :- (ګو + یا) (حرف) ګونـدې ، شایـد ، غالباً لکه چې تهٔ به وائې ، ظاهراً ، یعني۔

**ګویاکه** :- (ګو + یا + که) (ف تر ، حرف) فارسي ترکیب دے ۔ یعني مطلب دا چې۔

**ګویان** :- (ګو+ یا+ ن) (ف ، اس، فا، مذ ، جو ــ ه) خبرې کوونکے ، په خبرو کښې لګیا ، ګړېدونکے۔

**ګویاند** :- (ګو + یا + ن + د) (و ــ ګویان)

**ګویائي** :- (ګو + یا+ ئي) (ف ، اس، مو) د وېنا قوت ، د خبرو کولو طالت ، ګفتار۔

**ګوېر** :- (ګ+ وې+ ر) (و ــ ګوهار)

**ګوېږ** :- (ګ+ وې+ ګ/ ږ) (اس، مذ) (۱) تپوس ، پرسان ، تفحص دریافت ، (۲) پوښتنه ، خبر ګیري (۳) لټون ، تلاش۔

**ګوېږل** :- (ګ + وې + ګ / ږ + لْ) (مص) (۱) تپوس کول ، پوښتنه کول، تفحص کول (۲) خبرګیري کول (۳) لټون کول۔

**ګوېږنه** :- (ګ + وې + ګ / ږ + نَ) (حمص) تفحص کونه ، دریافت، تپوس ، پوښتنه کونه۔

**ګویک** :- (ګو + يَ + کْ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) د زنانه ؤ د پیزار یو پخوانے قسم چې پوندي ئې لړې لوړې وي۔

ګويړول :- (ګو + يَ + ؤ + لْ) (مص) غویاے په قلبه کښې اموخته کول۔

**ګویه** :- (ګو+يَ) (اس، مو) راغونډېدنه ،راټولېدنه ، ګرونجې کېدنه۔

**ګویه** :- (ګو + يَ) (اس، مو ، ج ــ ګویئے) خبره ، ګفت۔

**ګویئے** :- (ګو + یئے) (اس، مذ) خرابه خبره ، ناسازه خبره ، بد رد

ـــ **کول** :- بد و رد وئیل ، خرابه خولهٔ خوزول۔

**ګه** :- (ګَ +هْ) (ف ، اس، ظر) د "ګاه" مخفف دے ۔ (۱) د لاحقې په طور استعمالېږي او د وخت معنٰی ورکوي ۔ لکه : سحرګه ، د سحر وخت (۲) وخت ، په دې معنٰی کښې عموماً نور الفاظو سره راځي۔

ـــ **ګه** :- (ـــ ګَ + هْ) (ف تر ، اس ، ظر) کله کله ، ځینې ځینې وخت۔

ـــ **ګهے** :- (ـــ ګَ + هے) (فپ ، تر ، اس، ظر) کله کله ، ځینې ځینې وخت ، کله نا کله۔

**ګها** :- (ګَ + ها) (و ـــ ګهه)

**ګهانده** :- (ګَ + ها + ن + دَ) (و ـــ ګانده)

**ګهړی** :- (ګَ + ړَ + ی) (و ــ ګړی) (په پښتو کښې "هائیه" توري نشته ځکه داسې پر کړي الفاظ بغېر د هـ نه لیکل پکار دي۔

ګـهړیال :- (ګَ + ړْ + یا + ل) (و ــ ګړیال) (دګهړی ترلاندې نوټ وګورئ)۔

**ګهل** :- (ګَ + هـ + لْ) (مص) (۱) بې ترتیبۍ سره وران ویجاړ ګنډل ، د بوجۍ خولهٔ ګنډل۔

**ګهلے** :- (ګَ + هـ + لَے) (اس، مف ، ج ــ لي) غټ غټ او بې ترتیبه شان ګنډلے شوے۔

**ګهنټه** :-(ګَ + نْ + ټَ) (و ــ ګنټه) (دګهړی تر لاندې نوټ اوګورئ)

**ګهنټي** :- (ګَ+نْ + ټيْ) (و ــ ګنټي) (د ګهړی تر لاندې نوټ اوګورئ)

**ګهنده** :- (ګَ + هـ + نْ + دَ) (و ــ ګانده)

**ګهوار** :- (ګَ + هْ + وا + ر) (اس، مذ ، ج ــ ان) ګوار ، جټ باندېسے باندېځے ، ناپوهـ

په ښائست که ښائسته تر ښاپیری ئي
ولې دا جهـل دې بـد دے تر ګهوارو (خوشحال خان)

**ګهواره** :- (ګَ + هْ + وا + رَ) (اس، مو ، ج ــ رې) زانګو ، ځانګو

په هر ځاے کښې ناست ولاړ زانګم له غمه
مینې مـــخ راتـــه د زمکې ګهواره که (حمید)

**ګهوټي** :- (ګُو + ټيْ) (و ـــ ګوټي)

**ګهور** :- (ګَ + هُو + ر) (صف ، مذ ، مو ــ ه) ګُور ، ټینګ ، ناصفا غېر شفاف۔

**ګهه** :- (ګَ + هَ) (اس، مو ، ج ــ هې) ډوغل ، قته۔

**ګهے** :- (ګَ + هَے) (اس ظر) د "ګاهے" مخفف دے۔عموماً ګاه یا ګه وغېره په یو ځاے راځي۔لکه : ګه ګهے۔

ـــ **ګهے** :- (ـــ ګ + هے) (اس ظر) کله کله ، ځینې ځینې وخت ، کله نا کله۔

چې ګهے ګهے دې وووینم له ورایه
دا لاهم بې بخته نهٔ یم شکر باري (خوشحال خان)

**ګهے** :- (ګَ + هے) (صف، مذ، مو ــ ګهې) زخمي ، ژوبل۔

**ګهیځ** :- (ګَ + هِي + (د) ز) (اس، ظ) سحر ، صبح، صبا ، ګهیځ۔

**سوړ** ـــ :- (سو + ړ ـــ)

**خړ** ـــ :- (خ + ړْ ـــ)

**سپیره** ـــ :- (س + پے + رَ ـــ) صبح کاذب ، شنه خړه ، هغه رڼا کومه چې د صبح صادق نه لږه اول راښکاره شي۔بیا زر غېبه شي۔

**ګی** :- (ګَ +ی) (لاحقه) (۱) د پښتو مونثه لاحقه ده۔اسمونو پسې لګولے شي۔ او د وړوکوالي معنٰی ورکوي۔لکه : قلا ، قلاګۍ (۲) د پښتو لاحقه ده۔ اسمونو پسې لګي او د تانیث معنٰی پیدا کوي ۔ لکه : شاهزاده ، شهزادګۍ۔

**ګیځ** :- (ګَ + ئِ + (د) ز) (و ـــ ګهیځ)

**ګے** :- (ګے) (لاحقه ده) مذ ، ، ج ـــ ګي) د پښتو مذکره لاحقه ده ۔ اسمونو پسې لګولے شي۔او د وړوکوالي معنٰی ورکوي۔لکه : بلا ، بلاګے۔

**ګیان** :- (ګ + یا + ن) (هـ ، اس ، مذ) (۱) علم ، دانش (۲) عقل ، پوهه (۳) د معرفت علم۔

**ګي انا** :- (ګي + آ + نا) (اس، مع) د یو ملک نوم دے۔

**ګیاو** :- (ګ + یا + ؤ) (ه ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) زخمي ، ژوبل، ګائل۔

**ګیاه** :- (ګَ + یا (ه)) (اس، مو ، ج ـــ ګانې) واښهٔ۔

**ګیبے** :- (ګے + بَے) (اس، مذ ، ج ـــ بې) یو قسم د تنګو پائنڅو واله پرتوګ ، هغه پرتوګ چې پښنځې ئې چونړ چونړ وي۔

**ګیپ** :- (ګي + پ) (تف) (۱) ناځاپه ، نابېره (۲) کلک ۔دا ټکے عموماً د نیولو سره راځي۔

ـــ **نیول** :- ناځاپه کلک نیول او راګېرول۔چې خلاصېدے نهٔ شي۔

**ګیت** :- (ګي + ت) (هـ ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) سندره ، د سندرو یو قسم۔

**ګیت وهل** :- (اص) د مجلس نه پټ غوندې بهر وتل۔

**ګیتار** :- (ګي + تا + ر) + انګ ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) یو مغربي تاریز ساز ، ګیتار۔

**ګیتارسټ** :- (ګي + تا + ر + سْ + ټ) (اس، مذ ، ج ــ ان) د ګیتار (ساز) د غږولو ماهر۔

**ګیتره** :- (ګي + ت + رَ) (اس، مو ، ج ـــ رې) وړه بوجۍ۔

**ګیتګیتانے** :- (ګي + ت + ګي +تا + نې) (اس، مذ) د یوې لوبې نوم چې وړو وړو لړګو سره کولے شي۔دا لړګي ټول لوبغاړي لرې اوغورزوي۔ د چا لړګے چې وروستو پرې ووزي ۔ نور هلکان خپلو لړګو سره په وهلو وهلو هغه لړګے مات کړي۔

**ګېټ** :- (ګے + ټ) (انګ ، اس، مذ ، ج ــ ونه) لویه دروازه ، د کور مانۍ وغېره ، بهرانۍ دروازه۔

**ګېټس** :- (ګ + ټ + سْ) (انګ، اس، مذ ، ج ــ ونه) (۱) د جرابو د تړلو ربړ

، پټه ، (۲) اوږده پټه چې سوارهٔ یا سپاهیان ئې د ښدو نه چاپېره تاؤ کړي

**ګیټکې** :- (ګِي + ټْ + کَې) (اس، مذ ، ج ــ کي) وړوکے شان کاڼے ، وړه شان سنګریزه.

**ګیټکې** :- (ګِي + ټ + کَې) (اس، مذ ، ج ـ کي) د تیر خولهٔ چې د لیندۍ په جۍ (ژۍ) کښېښودے شي.

**ګیټۍ** :- (ګِي + ټَ + ی) (اس ، مو) (۱) د ښېښي هغه غونډ شان هډوکے چې د پونډۍ نه بره یو خوا بل خوا وتے وي - (ار : ټخنه) (۲) وړوکې شــان غــونډه لوټه چې د چیلم په ټوپۍ کښې کښېښودے شي- (۳) واړهٔ واړهٔ کاڼي چې د "زمـري" پــه لوبه کښې پکارولے شي (۴) د شطرنج مهرو ته هم ځینې وخت ګیټۍ ووائي.

**ګیټۍ** :- (ګِي + ټَ + ی) (اس، مو) اوري رنګ، نیلا رنګ.

**ګیټے** :- (ګِي + ټَے) (اس، مذ، ج ــ ټي) وړوکے شان کاڼے.

**ګیچ** :- (ګِي + چ) (اس، مذ ، ج ـــ ان) د چیني د مات شوو لوښو ټکړې چې واړهٔ ورسره لوبې کوي.

**ګیچ** :- (ګِي + چ) (صف، مو ـــ ه) بې هوشه ، بې هوش ، بې سده.

ـــ **اومنګ** :- (ـــ او+ م + ن + ګْ) (پ تر ، صف ، مو ـــ ه) بالکل بې هوشه ، بېخي بې سده.

**ګیچال** :- (ګِي + چا + ل) (ف ، اس، مذ) هغه سړے چې وښتهٔ ئې ببر او ګنجلک (ښتي) وي.

**ګیچه** :- (ګِي + چَ) (اس، مو ، ج ـــ چې) پوګ ، ګیخه ، پوسه (هغه پوګ وغېره چې د یو څیز نه رس یا روغن اوباسلو نه ورستو پاتې شي)

**ګیخه** :- (ګِي + خَ) (و ـــ ګیچه)

**ګید** :- (ګِي + د) (هـ ، اس، مذ) (۱) ګنجي ، مشهور مردارخور مارغهٔ (هـ : ګدھ) (۲) ټپوس (ظفر).

**ګیدړ** :- (ګِي + دَ + ړْ) (هـ ،اس، مذ، ج ـ ان) (۱) شغال ، مشهور ځنګلي ځناور (۲) مجازاً : بزدل ، یرندوکے (۳) لومبړه ، روباه (پ قاموس).

ـــ **باغ** :-(ـــ با+غ) (اس، مذ) کچماچو ، مشهور دارو ، ګیدړکور.

ـــ **تیبره** :- (ـــ تي + ګَ / ژَ) (اس، مو ، ج ـــ ړې) یو خاص قسم کاڼے دے چې خلک ئې برکت واله ګڼي- او ځان سره ئې په جېب کښې ګرځوي.

ـــ **سنګي** :- (ـــ سِ + ن + ګِي) وائي د یو وړوکي شان شکر په شان یو څیز دے - چې تاؤ راتاؤ وي او وېښتهٔ لري - مشهوره ده چې دا څیز چا سره وي د هغه هر یو کار ترسره کېږي - هر څوک ورته نژدې کېږي ، معشوقه ورله په خپله رادرومي (وغېره).

ـــ **کور** :- (ـــ ک + وَ + رْ) (پ تر ، اس، مذ) کچماچو ، انګور توره (مشهور دارو) (ف : جګ انګور).

**په ګنه کښې ـــ کښېنول (د چا)** :- د چا په زړهٔ کښې د کوم کار یا څیز نه وېره پیدا کول.

**د ـــ وادهٔ** :- (دَ ـــ وا + د) په داسې موقع وئیلے شي چې هم باران وربږي او هم د وریځو نه نمر (نور) راښکاره شي- نو وائي چې د ګیدړ وادهٔ دے.

**ګیدړه** :- (ګِي + د + ړَ) (اس، مو ، ج ـ ړې) (۱) د ګیدړ تانیث (۲) لومبړه ، تروړۍ ، سپلم.

**ګیدو** :- (ګِي + دو) (اس، مذ) زوړ لومبړ.

**ګېدي** :- (ګَې + دي) (اس، مذ) (۱) خر (۲) کم عقل.

ـــ **خر** :- (ـــ خَ + رْ) (ف، اس، مذ) (۱) ډېر کم عقل ، بېوقوف ، احمق

دُر ګــوهــر بــه هغه لوني بې ځـایه
چې په پوهه کښې ایله وي ګېدي خر (خوشحال خان)

(۲) مجازاً : برِوا ، دیوث (۳) نامرد ، هیجړا (۴) بزدل ، بې همته ،

یرندوکے.

**ګېډبنه** :- (ګَې + ډ + بَ + نَ) (اس، مو ، ج ـــ نې) ګېډے وړونکے په پردیو دروزو باندې ګېډبنو کړل سره لاندې (متل).

**ګېډبه** :- (ګَې + ډ + بَ) (اس، مذ) ګېډے وړونکے (مذکر).

**ګېډنالي** :- (ګَې + ډ +نا+ لي) (اس، مذ) املتاس ، مشهور دارو ، ګډنل.

**ګېډو** :- (ګَې + ډُو) (صف، مذ) لوئې ګېډې واله ، مجازاً : ډېر خوراک کوونکے ، ګېډوَر.

**ګېډور** :- (ګَې + ډَ + وُ/ وَ + ر) (صف، مذ ، مو ـ ه) لوئې ګېډې واله مجازاً : ډېر زیات خوراک کوونکے ، ګېډو ، خېټو.

**ګېډه** :- (ګَې + ډَ) (اس، مو ، ج ـــ ډې) (۱) شکم ، خېټه (۲) حمل، د ښځې امېدواري (۳) مجازاً : رحم ، بچه داني.

ـــ **اچول** :- قبضه کول.

ـــ **بودل** :- حمل لرل ، د ښځې په رحم کښې بچے بودل ، حمل اخېستل. لکه : د فلانۍ ګېډه ده.

ـــ **پړسېدل** :- راز په زړهٔ کښې پټ نهٔ ساتل.

ـــ **تېول** :- په ګېډه لاس وهل، مجازاً : د لوږې اظهار کول ، اوږے کېدل.

ـــ **ډکول / مړول** :- خوراک کول.

ـــ **ساتل** :- روزي ګټل ، خپل خوراک ګټل.

ـــ **غوړول** :- غوړ څیزونه خوړل ، غوړ خوراک کول.

ـــ **کښېناستل** :- مجازاً : مانده کېدل یا دولت نهٔ پاتې کېدل.

ـــ **کول** :- (۱) ګېډه غټېدل ، غټېدل ، مجازاً : شته من کېدل (۲) ګېډه لویه کېدل (۳) حامله کېدل ، حمل اخېستل ، بلاربېدل ، بلاربېدل.

ـــ **کېدل** :- حمل کېدل ، د ښځې امېدواره کېدل.

ـــ **ور** :- (ـــ و + رْ) (و ـــ ګېډور)

**په ـــ لاس وهل** :- (۱) د خوراک څښناک خواهش کول (۲) ډېر خوراک نه پس ګېډه مړل.

**په ـــ موړ** :- (پَ ـــ مو + ړ) (اس، مذ ، ج ـــ مارهٔ) هغه سړے چې اوږے نهٔ وي - عموماً ورسره "په تن پټ" هم وائي - یعني چې جامه لري - مجازاً شته من سړے ، بالکل بې غمه سړے ، فارغ البال.

**په ـــ میئن** :- (پَ ـــ مَ + ئَ + نْ) (پ تر ، صف ، مذ، مو ـــ ه) هغه سړے چې ښهٔ ښهٔ غوړ غوړ خوراکونه خوري یا غواړي.

**په ـــ ئې پړق ټکېږي** :- (مجازاً یا طنزاً) دومره ډېر خوراک کول چې ګېډه ئې دومره غټه او کلکه شي چې پړے پړې ټکېږي.

**خپله ـــ غوړه ساتل** :- په ځان په خپله غوړ خوراکونه کول ، صرف خپل غم او فکر کول.

**ګېډې** :- (ګَې + ډې) (اس، مو ، ج) د ګېډه جمع ، ډېرې ګېډې ، مجازاً خوراک کوونکي ، خورندګان ، ګټلو واله یو کس دے او ګېډې ورته ګڼې دي.

**ګېډې** :- (ګَې + ډې) (۱) د "ګېډه" جمع ده - (۲) د "ګېډه" مجروري وغېره شکل چې د مغیره تورو سره راځي.

**د ـــ اور** :- (دِ ـــ او + ر) (پ تر ، اس، مذ) د ګېډې تاؤ ، مجازاً لوږه ، اوږے کېدنه.

**د ـــ اور مړ کول** :- مجازاً : خوراک کول ،لوږه ختمول ،

**د ـــ تاؤ** :- (و ـــ ګېډې اور)

**د ـــ تاؤ سړول** :- (و ـــ د ګېډې اور مړ کول)

**د ـــ سپے** :- (د ـــ س + پےِ) (اس، مذ، ج ـ پي) (۱) هغه سړے چې د خوراک دپاره یو ځاے بل ځاے ګرځي (۲) هغه سړے چې ډوډۍ

خوراک ورکوي نو خوشامندي دي کوي.

**د ـــ غم کول** :- د خوراک د ځيزونو د حاصلولو کوښښ کول.

**د ـــ يار** :- (د ـــ يا + ر) (پ تر ، اس، مذ ، ج ـــ ان) (۱) هغه ملګرے چې محض د خوراک دپاره ملګري کوي ، مطلبي دوست ، مطلبي اشنا (۲) د خوړلو ځښلو شوقين.

**د ـــ ياري** :- (د ـــ يا + رِي) د مطلب ملګري ، د خوراک ځښاک دپاره ياري.

**ګېډۍ** :- (ګے + ډَ + ۍ) (اس، مو) د ګېډے تصغير. د غنمو اوربشو يا د وښو يا د بل کوم داسې ځيز وړوکې شان تړلې شوې يوه دسته.

**ـــ تړل** :- د لو شوي غنمو اوربشو يا د ګيا يا د بل کوم داسې ځيز وړې وړې دستې تړل.

**ګېډے** :- (ګے + ډَ ے) (اس، مذ ، ج ـــ ډي) (۱) د ربيلي شوي غنمو اوربشو يا د وښو يا د بل کوم دغه شان ځيز تړلې شوې لويه دسته (چې يو کس ئې اوړے شي) پنډ . (۲) مجازاً : هر تړلے شوے ځيز . لکه : د ګناهونو ګېډے . (۳) جنين ، د ګېډې ماشوم.

**ـــ تړل** :- د غنمو اوربشو ، وښو يا د بل کوم داسې ځيز لويه دسته تړل (چې عموماً يو تن ئې پورته کولے شي).

**ګېر** :- (ګے + ر) (اس، مذ) د هلکانو د يوې لوبې نوم دے.

**ګېر** :- (ګے + ر) (صف، مذ ، مو ـــ ه) حيصار، ننبتے ، ايسار.

**ګېر** :- (ګے + ر) (صف، مذ) چاپېره ، ګرد ، عموماً نورو الفاظو سره يو ځاے راځي. لکه : ګېر چاپېر ، هر طرف ته چار چاپېره.

**ـــ چاپېر** :- (ـــ چا + پې + ر) (پ تر ، اس، ظر) هر طرف ته ، ځلورو طرفونو نه ، چارچاپېره.

**ـــ و پېر** :- (ـــ و) پې + ر) (۱) چارچاپېره ، هر طرف ته ، ځلورو طرفونو نه ، ګرد ، (۲) دوکه ، فرېب.

**ـــ و پېر کېدل** :- (۱) (د چانه) چاپېره ګرځېدل ، تاوېدل ، چاته نژدې نژدې کېدل ، ديخوا اخوا کېدل (چاته) (۲) بې مقصده ګرځېدل ، ديخوا اخوا ګرځېدل.

**ـــ و پېر ګرځېدل** :- چار چاپېره ګرځېدل ، په خوا و شا کښې ګرځېدل

دا حميد د يار په غمه ګېر و پېر ګرځم
کــه طــواف کرم د مکې د مدينې ځۀ (حميد)

**ګېرا ـــ** :- (تف) (۱) له چارچاپېره ، له هر طرفه ، (۲) ګېرولو ته نيولو ته.

**ګېر** :- (ګې + ر) (ف ، فعل) د ګرفتن مصدر نه امر ، په معنٰی د ونيسه ، واخله.

**ـــ و دار** :- (ـــ و) دا + ر) (ف تر، اس، مذ) (۱) ونيسه او اولره جنګ جګړه ، معامله (۲) حکومت کول ، حکمراني کول ، حکم چلول.

**دست ـــ** :- (دَ + سْ + ت ـــ) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) لاس نيوونکے ، امداد کوونکے ، مرسته کوونکے.

**دېوال ـــ** :- (دے + وا + ل ـــ) اس، مذ ، ج ـــ ونه) يو قسم پخوانے لاټين چې دېوال سره به زوړندولے شۀ.

**ګير** :- (ګې + ر) (لاحقه) د فارسي لاحقه ده. اسمونو پسې لګولے شي او د نيولو معنٰی ورکوي. لکه : ماهي ګير ، هواګير.

**ګير** :- (ګې + ر) (ف ، لاحقه) د فارسي لاحقه ده. اسمونو پسې راځي. او د فاعل معنٰی ورکوي. لکه : عالمګير.

**ګيرا** :- (ګې + را) (صف) عادي ، اموخته ، چالاک ، زړۀ ور.

**ګيراؤ** :- (ګے + را + ؤ) (هـ ، اس، مذ) د هر طرف نه راحيصارونه. (هـ ـــ ګهيراؤ)

**ـــ اچول** :- د کوم سړي نه د ګڼو خلکو راتاوېدل ، او په مېنځ کښې ئې حيصارول.

**ګېر ګېره** :- (ګې + ر + ګې + رَ) (صف) دل ، غټ غټ ټکولے شوے.

**ـــ کول** :- غټ غټ ټکول ، دلول ، دل جوړول.

**ـــ کېدل** :- غټ غټ ټکېدلے کېدل. دل جوړېدل ، دل کېدل.

ګير ګيره :- (ګې + رْ + ګې + رَ) (و ـــ ګُر ګُره)

**ګېرل** :- (ګې + ر + لْ) (مص) قے کول ، التيې کول ، باقې کول.

**ګېرل** :- (ګے + ر + لْ) (مص) (و ـــ ګېرول)

د قنبــر عــلي د زړۀ په بــاغ نظر کا
چې ګېرلے په کښې مهر د حېدر دے (قنبر علي خان اورکزے)

**ګېرنده** :- (ګې + رِ + نْ + دَ) (اس، فا) نيوونکے ، په قبضه کښې راوستونکے ، اخېستونکے ، اغېشتونکے.

**ګېرو** :- (ګې + رُو) (اس، مذ) هغه دېوال چې په يوه احاطه کښې پردې دپاره جوړ شوے وي.

**ګېرول** :- (ګې + رَ + ؤ + لْ) (مص) راحيصارول ، ګرفتارول ، په قابو کښې راوستل ، نښلول.

**ګېره** :- (ګې + رَ) (هـ ، اس، مو ، ج ـــ رې) دائره، حلقه (هـ : ګهېرا)

**ـــ اچول** :- د کوم ځيز يا مجرم نه فوځ يا پوليس راتاوؤل ، د چارچاپېره نه راحيصارول.

**په ـــ کښې** :- په حلقه کښې ، په قابو کښې.

**ګېره** :- (ګے + رَ) (صف، مو، ج ـــ رې) د "ګېر" تانيث دے. راايساره.

**ګېره** :- (ګے + رَ) (اس، مو، ج ـــ رې) ګولائي ، محيط، لکه : د ونې ګېره.

**ګيره** :- (ګې + رَ) (اس، مو ، ج ـــ رې) (۱) وړه بوجۍ (۲) هغه لړګے چې د سسپار تير پرې د هغې کندے سره کلکولے شي. شمشيرکه، پولکه

**ګيره** :- (ګې + رَ) (صف) ډاډه ، دلېر ، زړۀ ور.

**ـــ کول** :- ډاډه کول ، زړۀ ور کول ، جرأت کول.

**ـــ کېدل** :- ډاډه کېدل ، زړۀ ور کېدل ، زړۀ موندل، جرأت پېدا کېدل.

**ګيره** :- (ګې + رَ) (و ـــ رېره)

**ګيره ور** :- (ګې + رَ + ؤ + رْ) (و ـــ رېره ور)

**ګيرۍ** :- (ګې + رَ + ۍ) (اس، مو) (۱) د يوې ونې نوم دے. (چې په سوات باجوړ کښې ډېره پېدا کېږي. ق) (۲) د قلبې يوه اله.

**ګيرے** :- (ګې + رَے) (اس، مذ ، ج ـــ ري) د پايې دور (حلقه) درګړه ، ګدړے.

**ګېرېدل** :- (ګې + رې + د + لْ) (مص) راحيصارېدل ، ننبتل ، په قابو کښې راتلل ، ګرفتاره کېدل.

**ګېږي** :- (ګې + ږي) (اس، مو) د وښو يا دُروزې وغېره نه جوړ شوے يو قسم پېزار.

**ګيز /ګهيځ** :- (ګې + ز) (و ـــ ګهيځ)

**ګيږکه** :- (ګې + ګَ / ژَ + کَ) (اس، مو ، ج ـــ کې) کشکره ، هککه (ع ـــ عکه)

**ګېس** :- (ګے + س) (انګ ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) ګاز ، هوا چې په کښې څۀ خاص ځيز امېز وي. يا د ځينو مرکباتو نه پېدا کېږي (۲) يو خاص قسم معدني مرکبه هوا ، چې بلېږي. (۳) يو قسم اله ، چې د ګېس په ذريعه رڼا ورکوي. (او د خاورو تېل په کښې اچولے کېږي) (۴) هغه بدبويه هوا چې په ګېډه او کلمو کښې پېدا کېږي او تکليف ورکوي. (چې بهر راووزي نو "پوسکې" نومېږي. (۵) پېټرول.

**ـــ لګول** :- د ګېس د رڼا اله بلول.

**د ـــ نل** :- (ـــ نَ + لْ)

**د ـــ نلکه** :- (ـــ نَ + لْ + کَ) (اس(۱) مذ ، (۲) مو (۱) ج ـــ ونه ، (۲) ج ـــ کې) هغه اوسپنيزه يا د بل کوم دات (فلز) نل په کوم کښې چې د بلولو ګېس ديو ځاے نه بل ځاے ته رسولے شي يا چې د دې په ذريعه ګېس خاصو الاتو ته رسولے شي.

**زهريلا ـــ** :- (زَ + هْ + رِي + لَ ـــ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) هغه ګېس (د کومو مرکباتو نه پيدا شوې هوا) چې په بوي ئې ځاندار مړ کېږي.

**کاربانک ايسډ ـــ** :- (کا + رْ + با + ن + کْ + اَ + ے + سَ + ډْ ـــ) (انګ، اس، مذ) هغه مرکبه هوا چې د کوئلې وغېره نه جوړېږي يا هغه هوا چې ځانداره څيزونه ئې بهر ته راوباسي.

**ګېسو** :- (ګَے + سو) (ف، اس، جم) هغه وېښتهٔ چې د تندي دواړو اړخونو ته لوے لوے پرېښودے شوے وي.

د نماستي په وخت ئې واکړه ازار مه شه
د اوربل غوټې ، کونځې د ګېسو هم لا (خوشحال خان)

**ګيګو** :- (ګي + ګَ + رْ) (اس ، مذ) يو قسم غرئيز سورګل.

**ګيل** :- (ګِي / ګ + لْ) (اس، مف) (۱) رغړند ، تولند (۲) رغړېدلے.

**ګيلاس** :- (ګِي + لا + س) (انګ ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) د شيشې د اوبو څښلو لوښے ، چې د ښيلن په شکل کښې وي. لاندې برخه کښې تنګه او خولهٔ ئې لږه ارته وي. ګلاس.

**ګېلاس** :- (ګَے + لا + س) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) د الو بالو د قسم يوه خوږه مېوه ، ارغنچان.

**ګېلاني** :- (ګي + لا + ني) (اس، مع) (۱) د ګېلان اوسېدونکے. (ګېلان په عراق کښې دے) جېلان هم ورته وائي. (۲) د عبدالقادر جېلاني (لوے ځوان) لقب ، چې هغه ددغې ګېلان يا جېلان اوسېدونکے وهٔ (۳) هغه سېدان چې د سيد عبدالقادر جېلاني (ګېلاني) اولاد وي.

**ګېلري** :- (ګَے + لَ + رِي) (انګ ، اس، مو) (۱) برانډه ، دالان (۲) د لوئې کمرې يا د هال دننه چجه (۳) د تصويرونو د نمائش ځاے لکه: ارټ ګېلري ، تصوير خانه ، نګارخانه.

**ګېلن** :- (ګَے + لَ + نْ) (انګ ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) د مائع (بهېدونکو) څيزونو يوه پېمانه ، عموماً د پېټرولو دپاره استعمالېږي.

**ګېلنے** :- (ګَے + لَ + نَے) (اس، مذ) د پېټرولو هغه ډبلے چې په کښې يو ګېلن پېټرول راځي.

**ګيلول** :- (ګِي / ګ + لَ + وْ + لْ) (مص) رغړول ، تولول.

**ګيله** :- (ګِي + لَ) (اس، مو ، ج ـــ لې) شکايت ، شکوه.

**ـــ امېز** :- (ـــ آ + مې + ز) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) د ګيلې شکايت سره ګډ ، داسې خبره چې ګيله هم ترې څرګندېږي.

**ګيلې** :- (ګِي + لې) (۱) د "ګيله" جمع ده. (۲) د "ګيله" مجروري وغېره شکل چې د مغيره تورو سره راځي.

**د ـــ ځاے** :- د ګيلې موقع ، د شکايت موقع ، (چې ګيله يا شکايت ترې کېدے شي)

نا اشناؤ څخه ځاے د ګيلې نشته
هر چې وايم زهٔ حميد له اشنا وايم (حميد)

**ګيلېدل** :- (ګِي / ګ + لې + د + لْ) (مص) رغړېدل ، تولېدل.

**ګېم** :- (ګي + م) (انګ ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) لوبه (۲) د لوبې يوه پانۍ يا بازي (۳) د ښکار ځناور وغېره.

**ګين** :- (ګِي + ن) (ف ، لاحقه) د فارسۍ لاحقه ، د "اګين" مخفف دے. اسمونو پسې لګولے شي. او د شموليت معنیٰ ورکوي. لکه : غم ګين ، شرم ګين (په پښتو کښې د "جن" په شکل کښې هم استعمالېږي. لکه : غم جن)

**ګېنتري** :- (ګَے + ن + ت + رَ + ی) (اس، مو) د خاورو يا د سختې کاڼيزې زمکې د کنستلو اله.

**ګېنته** :- (ګَے + نْ + ټَ) (اس، مو ، ج ـــ تې) (۱) د وخت يوه پېمانه ، شپېتهٔ منټه ، د ورځې شپې څلېرشتمه برخه ، (۲) (عدام) ګړۍ ، (د وخت ښودلو).

**ـــ ګر** :- (ګَ / ګ + رْ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) هغه لوړ عمارت يا مېناره چې بره سر کښې په کښې لويه ګړۍ لګېدلې وي. (۲) د پېښور ښار يو بازار ، چې په کښې دغه شان ګړۍ واله مېنار جوړ دے.

**ګېنته** :- (ګَے + ن + ټَ) (اس، مو) د چرچڼو د دام څهٔ برخه.

**ګېنټۍ** :- (ګَے + نْ + ټَ + ی) (اس، مو) (۱) ټلۍ ، جرس (۲) د بجلۍ هغه اله چې ټنګار کوي. د بجلۍ ټلۍ.

**ګېنجے** :- (ګَے + نْ + جَے) (اس ، مذ ، ج ـــ جي) د قميص د لاندې د اغوستو جامه.

**ګېند** :- (ګَے + ن + د) (اس، مذ، ج ـــ ونه) غونډسکے ، پنډوس ، ګن، پټوله

**ګينده** :- (ګِي + ن + دَ) (اس، مو، ج ـــ ې) غټ غټ ګنډ ، د ګنډلو يو خاص قسم.

**ګېنډا** :- (ګَے + ن + ډا) (و ـــ ګېنډے)

**ګېنډي** :- (ګَے + ن + ډي) (۱) د "ګېنډے" جمع ده. (۲) د "ګېنډے" مجروري شکل چې د مغيره تورو سره راځي.

**د ـــ څرمن** :- (دَ ـــ (ت) سَ + رْ + م + نْ) د ګينډې ځناور څرمن چې ډېره زياته سخته وي ، غټه او سخته څرمن.

**د ـــ څرمن په مخ اچول** :- ډېر زيات بې شرمه کېدل. **ګېنډے** :- (ګَے + نِ + ډَے) (اس ،مذ ، ج ـــ ډي) (۱) مشهور ځنګلي ځناور ، چې په پوزه باندې ئې يو مضبوط ښکر وي. (۲) مجازاً : غټ څورب او مندرے سړے.

**ګېنګ** :- (ګَے + ن + ګ) (انګ ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) ډله ، ټولے ، خصوصاً د بدو خلکو د غلو ، داړه مارو ټولے.

**ګېنګرو** :- (ګِي + ن + ګُ + رُو) (اس، مذ) د مرګ يا د نزع د اخري وخت حالت

**ګينګړے** :- (ګِي + ن + ګ + ړَے) (اس، مذ ، ج ـــ ړي) ګونګرو د فلزو (خاص قسم مرکب فلز ، سپين يا سرهٔ زر) نه جوړ شوے هغه وړوکے شان غونډ څيز چې مېنځ کښې ئې وړوکے شان کاڼے پروت وي او دې خوزېدلو سره دغه کاڼے يو خوا بل خوا لګي او اواز پيدا کوي.

**ګينۍ** :- (ګِي + نَ + ی) (اس، مو) د کونځلو يا د ګنو نه د تېلو يا د رس د اوښکلو اله ، د لرګي ګانۍ.

**ګينے** :- (ګِي + نَ + ے) (اس، مذ ، ج ـــ ني) بلورے ، د شيشے نه جوړ د ماشومانو د لوبو وړوکے غونډ څيز.

◈◈◈

# ل

**ل** :- (لا+م) (اس، مذ، جـ ونه) د پښتو څلور دېرشم، د فارسي اووۀ ويشتم، د اردو دېرشم او د عربي درويشتم توری. د ابجدو په حساب کښې ئې قيمت ۳۰ دے. د لره يا له د مخفف په طور هم راځي. لکه له پاره.

**لا** :- (ع، حرف) دعربي د نفي توری دے. د عربي الفاظو سره راځي او د نفي معنې ورکوي. لکه: لاحاصل.

ــــ **ابالي** :- (ـــاُ + با + لي) (عف، تر، صف) هغه سړے چې د ښۀ او بد خيال يا فکر نۀ کوي. بې پروا بې فکره. ازاد طبع. شوخ، بې شرمه، بد لحاظ، بې باکه، رند.

ــــ **احصٰي** :- (ـــاُ + ح + صا) (ع، جمله) زۀ نۀ شم شمارلے، يو حديث ته اشاره ده. "لااُحْصِیْ ثناءً عليک انت کما اثنيت على نفسک" زۀ ستا صفتونه نۀ شم شمېرلے. په تا کښې هغه واړه صفتونه موجود دي. کوم چې مو په خپله د خپل ځان په حقله فرمائيلي دي. محاوره کښې شمار ئې نۀ شي کېدے.

چې په لااحصٰي وئيل ئې خبردار کړم
چا زما ژبه گويا کړه په ثناء کښې (خوشحال)

ــــ **ادري** :- (ـــا + د + ري) (ع، جمله) ماته نۀ ده معلومه، زۀ ئې علم نۀ لرم.

ــــ **اعلم** :- (ـــا + ع + ل + م) (ع ـ جمله) زۀ علم نۀ لرم، ماته نۀ ده معلومه. د کوم څيز په حقله د بې علمي د اظهار په طور وئيلے شي. لاادري.

ــــ **اقل** :- (ـــا + ق + ل) (ع، تر، تف) کم نه کم.

ــــ **اله** :- (ـــا + لا + ه) (ع، جمله) د کلمې (لَآاِلٰهَ اِلّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰه) د سر اجزاء، مراد ترې ټوله کلمه ده. لکه: لاالٰه وئيل.

ــــ **انتها** :- (ـــا + ن + ت + ها) (ع، تر، صف) هغه څيز چې اخري حد ئې نۀ وي، بې انتها، بې حده.

ــــ **بد** :- (ـــبُ + د) (ع، تر، تف) ضرور، يقيني، مجبوراً (اصلاً د ,,لا ،، (د نفي کلمه) او د بد (علاج، چاره) مرکب دے).

ــــ **بدي** :- (ـــبُ + دي) (ع، صف) ضروري، لازمي.

ــــ **لاتعداد** :- (ـــت + ع + دا + د) (ع، تر، اس، عدد) هغه څيز چې شمېر ئې نۀ وي. يعني د شمېر نه بهر، بې شمېره.

ــــ **ثاني** :- (ـــثا + ني) (ع، تر، صف) هغه چې ثاني نۀ لري، بې مثله، بې نظيره، بې سياله، چې سيال نۀ لري.

ــــ **جرم** :- (ـــج + ر + م) (ع، تر، صف) بغېر د څۀ شک، يقيني، ضرور خوامخوا. مجبوراً، لازماً، له ضروره.

د فرښتو امين منت دے په دعا کښې
لاجرم ورځي پته کړم دعاهم (خوشحال)

ــــ **جواب** :- (ـــج + وا + ب) (ع، تر، صف، مو ـــ ه) (۱) هغه چې د کومې خبرې جواب ور څخه نۀ وي. جواب نۀ لرونکے، عاجز، پاتې راغلے. (۲) هغه څيز يا خبره وغېره چې ثاني ئې نۀ وي. لاثاني، بې سياله.

ــــ **جوابه کول** :- په بحث وغېره کښې پاتې راوستل. غلے کول.

ــــ **جوابه کېدل** :- جواب چا څخه نۀ پاتې کېدل، په بحث وغېره کښې پاتې راتلل.

ــــ **چار** :- (ـــچا + ر) (عف، تر، صف، مذ، مو ـــ ه) چې چاره ئې نۀ وي. چې بل علاج يا لار ئې نۀ وي. مجبور، محتاج، عاجز، غريب.

ــــ **چاره کول** :- عاجز کول، خوارول، غريب مفلس کول، مجبوره کول.

ــــ **چار کېدل** :- خواري غريبي راتلل، نادار کېدل، مجبوره کېدل.

ــــ **چاري** :- (ـــچا + ري) (اس، مو) مجبوري، محتاجي، بې وسي، غريبي، ناداري، نيستي.

ــــ **حاصله** :- (ـــحا + ص + لَ) (عپ، تر، صف) هغه کار وغېره چې حاصل يا فائده ئې هېڅ نۀ وي. عبث خوشے، بې نتيجې، بې فائدې.

ــــ **دوا** :- (ـــد + وا) (عف تر، صف) هغه بيماري چې علاج ئې نۀ وي. لاعلاجه، ناعلاجه. هغه معامله يا کشاله چې حل ئې ممکن نۀ وي.

ــــ **ريب** :- (ـــرې + ب) (ع، تر، تف) بغېر دڅۀ شک شبهې نه، بې شکه.

ــــ **زواله** :- (ـــز + وا + لَ) (ع، تر صف) هغه چې زوال نۀ لري. تل پاتې کېدونکے، تل په خپل حال پاتې کېدونکے، تلوالے لرونکے.

ــــ **لاشريک** :- (ـــش + ري + ک) (ع، تر، صف، مذ، مو ـــ ه) د خداے تعالىٰ صفت دے. چې شريک نۀ لري.

ــــ **شعور** :- (ـــش + عو + ر) (ع، تر، اس، مذ) (۱) هغه خبره وغېره چې په شعور (پوهه) کښې نۀ وي. (۲) يو قسم ذهني کېفيت دے.

ــــ **شعوري** :- (ـــش + عو + ري) (ع تر، صف) لاشعور سره تعلق لرونکے.

ــــ شعوري طور سره :- د پوهې او علم نه بغېر.

ــــ **شې** :- (ـــشې) (ع، تر، صف) چې هېڅ څيز نۀ وي. نا څيز، ډېر حقير.

ــــ **طائل** :- (ـــطا + ئې + ل) (ع، تر، صف) لاحاصله، بې فائدې، فضول.

ــــ **علاجه** :- (ـــع + لا + جَ) (عپ، تر، صف) هغه (مرض) چې علاج ئې نۀ وي. هغه مسئله چې څۀ حل ئې نۀ وي.

دا د عشق لاعلاجه رنځ دے نۀ پوهېږم
که بې دمه ئې چړې منگور دے (حميد)

ــــ **علمه** :- (ـــع + ل + م) (ع، تر، صف) هغه چې علم نۀ لري. بې علمه، ناخبره.

ــــ **علمي** :- (ـــع + ل + مي) (عف، اس، مو) بې خبري، چې د کومې خبرې په حقله علم نۀ وي.

ــــ **غرضه** :- (ـــغ + ر + ضَ) (فپ، تر، صف) داسې کار وغېره چې په کښې څۀ (ذاتي) غرض يا طمع نۀ وي. بې غرضه.

ــــ **محاله** :- (ـــم + حا + لَ) (ع تر، تف) ضرور، خواه مخواه، هرومرو. (اصلاً د "لامحالة من هذا الامر" مخفف دے چې معنىٰ ئې دي چې ددې کار نه گرځېدنه نۀ شته. د کوم کار نه / څخه چې گرځېدنه نۀ وي هغه هرومرو کېدونکے وي).

ــــ **محدود** :- (ـــم + ح + دو + د) (ع، تر، صف، مذ، مو ـــ ه) هغه چې حد پُوله ئې نۀ وي. بې حده، بې انتها. (په پښتو کښې عموماً "لامحدوده" استعمالېږي. په دې کښې "لا"، د تانيث علامه نۀ ده).

**ـــــ مکانه** :- (ـــم+کا+ن)(ع ، تر ، صف) هغه چې مکان (ځای) نه لري .د خدای پاک صفت دی.

**ـــ وارثه** :- (ـــوا+ر+ثَ)(ع ، ف تر ، صف) (هغه کس چې) وارث نه لري. بې وارثه ، د میرات هغه مال چې څوک حقدار یا دعوې دار ئې نه وي. بې وارثه مال.

**ـــ ولدَ** :- (ـــو+ل+د)(عپ ، تر ، صف) هغه کس چې اولاد ئې نه وي . بې اولاده ، میرات.

**ـــ یُحصیٰ** :- (ـــیُ+ح+صا)(ع ، تر ، اس ، عدد) هغه څیز چې شمېر ئې نه وي.د شمېر نه بهر ، بې شمېره.

**ـــ یزاله** :- (ـــي+زا+لَ)(عپ ، تر ، صف) هغه ذات چې زائل کېدنه ئې نه وي.تل پاتې کېدونکے.دایم.د خدای پاک یو صفت دی.

**ـــ یعني** :- (ـــي+ع+نی)(ع ، تر ، صف) هغه کار یا خبره وغېره چې معنیٰ نه لري.بې هوده ، بې فائدې.

**ـــ یموت** :- (ـــي+مو+ت)(ع ، تر ، صف ، مذ ، موــــه) هغه ذات چې مرګ ئې نه وي .بې مرګه ، تل پاتې کېدونکے ، غېرفاني ، د هغه خوراک په حقله وئیلے شي چې بنیادم پرې هیله ژوندے پاتې کېدے شي.د ژوند دپاره ضروري خوراک.

**لا** :- (اس ، مذ) په الجبره کښې دا علامت د نیشت یا د نامعلومه عدد دپاره استعمالېږي.

**لا** :- (لا)(حرف ، د ظر) تر اوسه پورې ، تر دې وخته ، هغه لا نۀ دے راغلے. تر کله پورې.

لا بـه کله د یار جـــور و ستم تام

چې به ماته شي په لطف و کرم رام (علي خان)

تر دغه وخته.د ماښام مازیګر ئې لا نۀ وو ویلے چې هغه را ورسېد.

ع ما لا ګل بوئي کړے نۀ وۀ بهار تېر شه

نور ، زیاتي. دا خو به لا نۀ وي! په مقابله کښې ، ته لا نور غواړې ؟

**لا** :- (لا) (سابقه) سابقه ده.عموماً د تېر وخت معنیٰ ورکوي.

**ـــ بل صبا** :- (ـــب+ل+ص+با)(پ تر ، اس ، ظ) د سبا نه پس راتلونکې ورځ ، صبانه بله ورځ.

**ـــ بـل کـال** :- (ــــب+ل+کـا+ل)(پ تـر ، اس ، ظ)د بـل کـال نـه پس راتلونکے کال ، دریم کال.

**ـــ بل ګهیځ** :- (ـــب+ل+ګ+هي+(د) ز)(پ تر ، اس ، ظ) دسبائي ګهیځ (سحر) نه پس راتلونکے ګهیځ (سحر) .سبا نه بله ورځ.

**ـــ پسي** :- (ـــپ+سي)(حرف ، ظ)ډېر ورپسې ، نور ورپسې ، لکه: لا پسې ئې نوري خبرې جوړې کړلې.

**ـــ غور نیکۀ** :- (ــغ+ر+ني+ک)(اس ، مذ)د نیکۀ نیکۀ .

**لا** :- (حرف) هُم.لکه: دا مال خو په بازار کښې څوک پوښتي لا نه.

**لا** :- (حرف) زیات ، نور زیات.

په هر ځای چې څو محبوبې سره کښېني

هغه ځای مې تـــر جنت ښائسته لا کا (خوشحال)

**لا** :-(لِا) (حرف مقدار) ډېر

د مرد پېغور ده ، جامه وربښمینه

نـــــه دې مهینــه وي ، نه لا رنګینه (خوشحال)

**لا** :-(لا) (حرف) بلکې.

که عاشق د یار په تېغ مري

پرې منت دے د یار لا (خوشحال)

**لا** :- (حرف) د استثنا توری دے.یعني د "یا"،

ګرانه نۀ کېږي دوې خوا

لا نوکري پرېـــږده ، لا ما (غاړه)

**لا** :- (حرف) د تاکید دپاره راځي او د وخت معنې ورکوي.

چې نظر به د کرم په خوشحال کاندې

لا بـــه کله وي دا فضـــل و کــــرامت (خوشحال)

**لا** :-(لا) (انګ ، اس) قانون.

**لا** :- (ف ، اس ، مذ) د ,,لائے،، مخفف دے.ختـه ، لَهَه.

**لا اوړم کال** :- (لا+او+ړ+م+کا+ل).

**لا ورم کال** :- (لا+وُ+ړ+مــــــ)(پ تر ، اس ، مذ) د اوړم / وړم کال نه اول.

**لا اوړمه ورځ** :- (لا+او+ړ+م+ه+و+ر(د) ز).

**لا وړمه ورځ** :- (لا+وُ+ړ+مـــ) د بله ورځ نه لا بله ورځ. د وړمې ورځې نه اول تېره شوې ورځ.

**لابراتــور** :- (لا+ب+را+تـو+ر)(فر ، اس ، مـذ ، جـــــونـه)لیبـارټري ، د تجربو کولو ځاے.

**لابوري** :- (لا+بو+ړي)(اس ، مو) خوشامنده ، خوشامد ، (ار ـــچاپلوسي)

**لابي** :- (لا+بي).

**لوبي** :- (لو+بي)(انګ ، اس ، مـو ، جـــګانې) د انتظام کوټـه ، ډیوډۍ .د هم خیاله خلقو د یو ځائې کېدونې ځاے.

**لاپ** :- (لا+پ)(اس ، مذ ، جــــونه) د لاف بدشکل.ډوزه.

**ـــ زن** :- (ــــــز+ن)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ــــه) لاپــې وهــونکے ، لاپو.ډوز مار ، (لافزون).

**لاپه** :- (لا+پَ) (اس ، مـذ ، جــــپې) د ,,لاف،، بدل شکل دے. (و ـــ لاپ)

**ـــ وهل** :- لاف وهل ، ډوزه وهل ، د خپل طاقت نه لویه خبره کول. د کوم کار د کولو ذمه اخېستل.

**لاپې** :- (لا+پې)(اس ، مــو ، ج) د ,,لاپه،، جمع ده .د ,,لاپـه،، مجروري وغېره شکل دے.چې مغېره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ وهل** :- لاف وهل ، ډوزې وهل ، د خپل طاقت نه زیاته خبره کول.

**لاپېزے** :- (لا+پې+زے)(صف) مړاوے ، پژمرده.

**لات** :- (لا+ت)(اس ، مع) د یو بُت نوم دے چې عربو به ئې د اسلام نه اګاهو عبادت کاوۀ.

**ـــ ومنات** :- (ـــ(تو) م+نا+ت)(ع ، تر ، اس ، مع) دواړه د بُتـانو نومونـه دي.چې عربو به ئې د اسلام نه اګاهو عبادت کاوۀ.

دخپل غرض په سبب هسې بې غرض شوم

چې سپـــــاري راتـــــه تـــــرسا لات و منات (حمید)

**لا تري** :- (لا+ت+ري) (وــــلاټري).

**لا تهـــ** :- (لا+تَـــــ)(سابقه) سابقه ده.د وخت اسمونو سره لګي.او د وړاندې یا بل معنې ورکوي.

**لا تین** :- (لا+تي+ن)(فر ، صف) لاطیني ، لېټن.

**لا تیني ژبه / جبه** :- لاطیني ژبه / جبه ، لے ټن ژبه ، یوه پخوانۍ ژبه / جبه چې پخوا په اټلي (اطالیه) کښې وئیل کېده او د یورپ ډېرې ژبې ترې وتې دي.

**لاټ** :- (لا+ټ)(انګ ، اس ، مذ ، جـــان) د انګرېزي د ,,لارډ،، بدل شکل دے .د پېرنګیـانو د ملک یـو لـوے خطاب دے . ګـورنر ، کمشنـر ، وایسرائے یا بل کوم داسې خطاب یافتـه حاکم.داسې سړے چې د خپل

حېثيت نه زيات نمائش کوي - (طنزاً) نواب ، خان ، سردار .

**لاټ** :- (لا+ټ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د يو شيز يا جنس ډېر ے . (هـ) د وسپنې وغېره لوړه ميناره (مناره) يا ولاړه ستن .

**ـــ پادري** :- (ـــ پا + د + ري) (انګ ، پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د علاقې لوے پادري ، د ګڼو ګرجو مشر ، پادري .

**ځان نه ـــ جوړول** :- ځان لوے سړے ګڼل يا داسې نمائش کول .

**د ـــ زوے** :- (طنزاً) لوے سړے ، ډېر طاقت يا دولت واله - د نواب زوے .

**لاټري** :- (لا+ټ+ري) (انګ ، اس ، مو) د انعام د وېشلو يوه طريقه ، چې ګڼ کسان د لږو لږو روپو ټکټونه واخلي - بيا په دې خرڅ شوؤ ټکټونو کښې يو څو په هسک راوباسي - او دغو کسانو له غټ غټ انعامونه رقمونه ورکوي - او نور بې شمېره خلق تش لاړ شي - په هسک راوښکنه - په قسمت سره راوښکنه يا راوتنه .

**ـــ اچول** :- د لاټرۍ يا د هسک په ذريعه انعامونه يا رقمونه راوباسل - د لا ټرۍ ټکټ اخيستل .

**ـــ راوتل** :- په لاټرۍ کښې (د هسک په ذريعه) انعام راوتل - ويړيا مال لاس ته راتلل .

**لا ټکے** :- (لا+ټ+کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) د جوارو توکه .

**لاټو** :- (لا+ټو) (اس ، مذ ، ج ـــ ګان) د پُنبې تش ګل .

**لاټو** :- (لا+ټو) (اس ، مذ ، ج ـــ ګان) د ماشومانو د لوبو شيز - چور لندے چې تار ترې تاؤ کړي - او بيا تار په زور سره راکاږي - نو بيا دغه شيز تر ډېره ساعته په زمکه ګرځي .

**لاټو** :- (لا+ټو) (اس ، مذ ، ج ـــ ګان) يوه مرغۍ ده چې قسم قسم اوازونه اوباسي .

**لاټو** :- (لا+ټو) (اس ، مذ ، ج ـــ ګان) د کوکنار تشه غوزه .

**لاټول** :- (لا+ټ+وَ+ل) (اس ، مذ) شاعر .

**لاټولي** :- (لا+ټ+وَ+لي) (اس ، مو) شاعري .

**لاټه** :- (لا+ټ) (فعل) د لټېل مصدر نه د ماضي صيغه ، لټوۀ ، لټاوۀ .

**لاټـه مرغـۍ** :- (لا+ټ+م+ر+غ+ۍ) (پ تـر ، اس ، مـو) د غـرۀ د ښـکار مرغۍ .

**لاټي** :- (لا+ټي) (هـ ، اس ، مو ، ج ـــ ګانې) کوتک ، عصا .

د داد خوا جواب لاټۍ يا کوتک دے

په دربار چې ئې غوغا کا دادخواهان (خوشحال)

**لاټـي بـرنس** :- (لا+ټـي+ب+ر+ن+س) (اس ، مـع) د ,,لارډ برنيـز ،، بـدل شکل دے - چا چې د افغانستان په جنګونو کښې ډېر شهرت موندلے وو - (طنزاً) لوے سړے ، نواب صېب ، لاټ .

**د ـــ زوے** :- (د ـــ زو+ئے) (انګ پ تر ، صف) طنزاً وئيلے شي - د لاټ زوے ، د نواب زوے - لکه : د ځان نه دې د لاټي برنس زوے جوړ کړے دے .

**لاټي خېل** :- (لا+ټي+خې+ل) (اس ، مع) د ماخي خېلو څانګه ده - ماخي خېل (د جانس ، کريم خېل ، علي ، کاکاخېل ، بومئ ، نصرئ ، کالو خېل ، احمد زئ ، درويش خېل) وزير دي .

**لاټين** :- (لا+ټي+ن) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د (انګرېزۍ د ,, لېنټېرن ،، بدل شکل دے) په اردو کښې ورته لالټېن وائي - خاص قسم ډيوه چې د خاورو تېل په کښې بلېږي - خو لمبه ئې په شيشه کښې پټه وي .

**لاجبر** :- (لا+ج+ب+ر) (لاس ، مذ) د لاجورد بدل شکل دے - د شين (نيلا) رنګ قيمتي کاڼے - د څېنو نارينه ؤ نوم هم وي .

**لاجوردي** :- (لا+ج+و+ر+دي) (اس ، صف) د لاجورد کاڼي په شان نيله و اسماني رنګ .

**لاچارۍ** :- (لا+چا+ر+ۍ) د ,,لاچاري ،، جمع ده - د ,,لاچاري ،، مجبوري وغېره شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي .

**د ـــ نه / څخه** :- د مجبورۍ ، د غريبي ناداري له کبله ، د بدې ورځې ، چې بله لار ئې نۀ وي .

**لاچکه** :- (لا+چ+کَ) (اس ، مو) د سپو يو قسم ، لاچے ، چې وېښتۀ پرې ډېر کم وي .

**لاچي** :- (لا+چي) (اس ، جم) الائچي ، د مصالو يو اهم جز - چې د خوند د پاره په نورو څيزونو کښې هم اچولے شي - په داروګانو کښې هم پکارولے شي .

وا ړه زهر شي زما تر ستوني درومي

بې له ياره که همه لاچي لونګ خورم (رحمان بابا)

**تور ـــ** :- (تو+ر ـــ) (پ تر ، اس ، جم) د الائچو يو قسم چې تور او غټ وي او خاص کر په پخکړو وريژو / وريجو کښې اچولے شي - په داروګانو کښې هم پکارولے شي .

**شنه ـــ** :- (ش+ن ـــ) (پ تر ، اس ، جم) د الائچو يو قسم چې رنګ ئې شين او د تورو لاچو نه ډېر واړۀ وي - شنو چايو ، فيرنۍ وغېره کښې د خوشبويۍ او خوند د پاره اچولے شي - څېنو داروګانو کښې هم استعمالېږي .

**لاحق** :- (لا+ح+ق) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) **تور ـــ** :- (تو+ر ـــ) (پ تر ، اس ، جم) د الائچو يو قسم چې تور او غټ وي او خاص کر په پخکړو وريژو / وريجو کښې اچولے شي - په داروګانو کښې هم پکارولے شي .

**شنه ـــ** :- (ش+ن ـــ) (پ تر ، اس ، جم) د الائچو يو قسم چې رنګ ئې شين او د تورو لاچو نه ډېر واړۀ وي - شنو چايو ، فيرنۍ وغېره کښې د خوشبويۍ او خوند د پاره اچولے شي - څېنو داروګانو کښې هم استعمالېږي .

**لاحق** :- (لا+ح+ق) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ورلګېدونکے ، نښتونکے .

**ـــ کېدل** :- ورسره لګېدل ، ورپورې نښتل - لکه : مرض لاحق کېدل .

**لاحقه** :- (لا+ح+قَ) (اس ، مو ، ج ـــ قې) هغه حرف چې بل کوم لفظ نه وروستو ورنښلولے شي - خو د دغې لفظ په معنٰی کښې بدلون راولي .

**لاحول** :- (لا+حو+ل) .

**لا حوله** :- (لا+حو+لَ) (ع ، جمله) ,, قوت نۀ شته ،، يا قوت نۀ لري - اصلاً د ,, لاحول ولاقوة الابالله ،، مخفف غونډې دے - دا کلمه د شېطان يا د شېطاني وسوسو د لرې کولو د پاره وئيلے شي .

**ـــ ويل** :- د شېطان يا د شېطاني خيالاتو او توهماتو د لرې کولو د پاره لاحول ولاقوة الابالله وئيل .

**په ـــ تېرېدل** :- په نفرت سره ترې لرې کېدل - لکه چې شېطان ته لاحول ولاقوة الابالله وائي .

هـر چـرته چې ګـرځي په لاحول ترې تېرېږه

سل بلا په زړۀ کښې سل دانې تسپې په غاړه (خوشحال)

**لاخي خېل** :- (لا+خي+خې+ل) (اس ، مع) د پريدۍ څانګه ده - پريدۍ ، اشوخېل ، ادم خېل) افريدي دي .

**لاد باد** :- (لا+د+با+د) (اس ، مذ) طاقت ، زور ، قوت عموماً د ,, لاده باده ،، (مجروري) شکل کښې استعمالېږي .

**لادو** :- (لا+دو) (و ـــ لاډو)

**لاده باده** :- (لا+د+با+د) د ,, لاد باد ،، مجروري وغېر شکل - چې د مغيره ؤ توري سره راځي .

**د ـــ پرې ايستل** :- د زوره غورزول ، زورقوت ، تمامه ول ، دومره کمزورے

کول چې د حرکت نه پاتې شي .

**له ـــ پرېوتل** :- د طاقته غورځېدل ، کمزورے کېدل، توان نۀ پاتې کېدل.

چـې لـه لاده باده پرېوځي زميندار

نور تعين پرې کروړے شي يا شقدار (افضل خان خټک)

**له ـــ پرې اېستل / پرېباسل** :- له زوره غورځول ، کمزورے کول ، طاقت نه وتے کېدل.

مينه د ښکلو هسې بلا ده

عاشق پرېباسي له لاده باده (نجيب)

**له / د ـــ پرېوتل** :- کمزورے کېدل ،داسې کمزورے کېدل چې د حرکت نه پاتې شي.

**له ـــ وښکل / وباسل** :- و ـــ (له لاده باده پرې اېستل).

**لاړنګ** :- (لا+ ړ + ن + ګ) (صف ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) لوړ دنګ او بې ډوله سړے.هغه سړے چې لوړ هم وي او نور اندامونه ئې هم بې سُره وي.

**لاړو** :- (لا+ ړو) (اس ، مع) د رکهنوال څانګه ده .لـوني دي .د لاړو څـانګې دادي. ملکزي ، جيلزي ، جمال زئ ، منوانزي ،بوئيازي او سدزي.

**لاړو** :- (لا+ ړو) (اس ، صف) ناز پروره ،په ډېره مينه او ناز ساتلې شوې . ناوې (هـ ـلاړلي).

**لاړو** :- (لا+ ړو) (اس ، مذ ، ج ـــ ګان) د ډوډې خالي غوزه ، تشه ډوډه . کم عقل.

چې بې عشقه له کدو دے

تش بې مغزه يو لاړو دے (بابو جان)

**لاړو** :- (لا+ ړو) (اس ، مذ ، ج ـــ ګان) لاټو ، د ماشومانو د لوبو څيز ، چورلندے.

**لاړونے** :- (لا+ ړو + نے) (اس ، مذ ، ج ـــ ني) غټ غونډ مونډ لرګے.

**لاړې خېل** :- (لا+ ړې + خې+ ل) (اس ، مع) د تاشي خېلو څانګه ده . تاشي خېل (شراکي ، ګلي ، ادم خېل) افريدي دي.

**لاړې خېل** :- (لا+ ړې + خې + ل) (اس ، مع) د مسکيو څانګه ده .مسکي ( ملي زاد ) دوړ دي.

**لاړيز** :- (لا+ ړې + ز) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) کم عقل ، بې هوده ، خوشے تشے ، اواره ګرد .

**لار** :- (لا+ ر) (اس ، مو ، ج ـــ رې) لور ، سرک ، سړک ، هغه اوږده زمکه چې خلق پرې د يو ځاے نه بل ځاے ته ځي راځي.

**ـــ اخيستل** :-

**ـــ اغيشتل** :- سُرسار جنګول ، يارانه اختيارول ، اټ سټ لګول

**ـــ بندول** :- په لار کښې خنډ اچول ، لارې ته بند بز لګول ، په لاره تګ راتګ بندول.

**ـــ پرې کول** :-

**ـــ غوڅول** :- (و ـــ لار وهل)

**ـــ پرېکونے** :- (ـــ پ + رې + کو + نے) (پ تر ، اس ، فا ، ج ـــ ني) لار وهونکے ، په لار تلونکے ، لار قطع کوونکے . تېز رفتاره.

**ـــ په سر ,, بودل ,,** :- ډېر مزل يا سفر پاتې ,, بودل ,,

**ـــ خطا کول** :- (و ـــ لار غلطول)

**ـــ داسمان** :- (ـــ د ، ا + س + ما + ن) (پ تر ، اس ، مو) کهکشان ، آسمان بازار.

**ـــ درحيل** :- (ـــ د + ر + حي + ل) (ع ، پ ، تر ، اس ، مو) د سفر لار ، د تللو لار ، کنايةً د مرګ لار.

چـې پـه لار درحيل راغې روارو

څۀ کسرا او څۀ پرويز او څۀ خسرو! (خوشحال)

**ـــ سمول** :- لار درستول ، د لارې کندې کوندرې هوارول. سـمه لار ښـئيل ، سمې لارې ته رهنمائي کول.

**ـــ ښودنه** :- (ـــ خو / شو + د + ن)

**ـــ ښوونه** :- (ـــ خو / شو + ؤ + نَ) (پ تر ، حمص )رهنمائي

**ـــ ښودونکے** :- (ـــ خو/شو+ دُو + ن + کے )

**ـــ ښووونکے** :- (ـــ خو/شو+وو +ن +کے) (پ تر ،اس ، فا ، ج ـــ کي)راه نما ، رهنما ، صحيح ، لاره ښودونکے .

**ـــ ښئيل** :-

**ـــ ښودنه کول** :- رهنمائي کول ، صحيح لار ښئيل ، هدايت ورکول.

**ـــ غلطول** :- لاره غلطېدل ، بې لارې کېدل ، لاره ورکېدل.

خلاف توقع د يو دوست وغېره پېښنه کول . لکه : نن دې څنګه لار غلطه کړه ؟

**ـــ کتل** :- انتظار کول.

**ـــ لرل / ساتل = چاسره** :- ملګرتيا لرل ، په ساز باز کښې شريک ,, بودل ,, ، سُر سار لرل. (ناجائز) تعلق لرل.

**ـــ نيول** :- په لاره روانېدل ، روانېدل ، سفر کول ، لار يا سړک اختيارول ، لکه : بس دغه لار ونيسه.

**ـــ نيول** :- لار بندول ، مقابله کول.

هم په دا عقل بې عقله معلومېږې

چې په زور د مېږي لار نيسي د فيل (حميد)

**ـــ نيـول** :- چاته په لاره کښې (په بدنيت) کښېناستل .په ځاؤ(ځئ) کښې کښېناستل (چاته) قاعده طريقه خپلول.

**ـــ نيونه** :- ( ـــ ني + ؤ + نَ ) (اس، مو ، ج ـــ نې)لاره وهل ، شوکه ، رهزني.

**ـــ نيوونکے** :- (ـــ ني + وو + ن +کے ) (پ تر ،اس ، فا ، ج ـــ کي)چاته په لاره کښې (په بد نيت) په څو کښې کښېناستونکے .شوکه کوونکے ، شوکمار ، ډاکه مار، ډاکو.

**ـــ ورکول** :- بل کس ته د ځان نه مخکښې تللو دپاره مخه پرېښودل .وروستو راتلونکي ګاډي له وړاندې کېدلو دپاره لار پرېښودل.

**ـــ ورکے** :- ( ـــ و + ر + کے ) (پ تر ، اس مف ، ج ـــ کي)هغه چې لار ترې غلطه شوې وي.ګمراه ، لار خطا .

**ـــ وهل** :- مزل کول ، په لاره روان او سېدل . لکه: څلور ميله لار مو ووهله. لار شوکول ، په لار کښې شوکه کول. د بل په کار کښې اړيچه اچول ، د بل په روان کار کښې ورانے پيدا کول

**ـــ وهونکے** :- (ـــ و + هو + ن + کے ) (پ تر ، اس ، فا ج ـــ کي) (۱) هغه چې په لاره ځي ، په لاره تلونکے ، لاره طے کوونکے .(۲) رهزن.

**په خپله ـــ تلل** :- خپل مزل کول ، په بل چا غم غرض نۀ کول.

**په ـــ کښې ازغي کرل** :- خلقو ته د تکليف رسولو کار کول.

لکه : ازغي مه کره د بل سړي په لار کښې (رحمان بابا )

**په ـــ کول** :- په ښۀ عمل اماده کول.

**سمه ـــ** :- (س + م ـــ) (پ تر ، اس ، مو ـــ ج ـــ ې ، ې) ښغه لار ، صحيح لار

**لويه ـــ** :- (لو + يَ ـــ) (پ ، تر ، اس ، مو) هغه لار چې پلنه (يا اوږده) وي .شاهراه. د مرګي لار ، مرګ ، فنا .

**لار** :- (لا+ر) (اس ، مو ، ج ـــ رې) طور ، طريقه ، دستور ، قاعده ، روش

**ـــ اېستل /اباسل/ وښکل** :- نـرخ اېستل ، نوې قاعده رواج يا دود دستور جوړول و بې لارې پيدا کول.

**ـــ بندول** :- قاعده يا دستور ختمول.

**ـــــ جوړول** :- نرخ ایښتل ، نوے دستور یا قاعده شروع کول.بې لارې پیدا کول

**ـــــ کول** :- د قاعدې دستور یا د رواج مطابق کار کول ، د رواج پابندي کول.

**ـــــ کول ، چا سره** :- د دستور او رواج مطابق کار کول.

**ـــــ نیول ، اختیارول** :- قاعده یا طریقه خپلول.

**ـــــ ولیکه** :- (ـــــ رو (لي + کَ) (پ تر ، اس ، مو) رواج ، طور طریقه ، دود دستور ، لکه : د پلار نیکهٔ لار و لیکه څنګه پرېږدو.

**دغه ـــــ ده** :- دغه دستور دے ، دغه قاعده ده .دغه نرخ دے .خصوصاً د کرائې په حقله وئیلے شي.

**نوې ـــــ ایښتل ، اباسل ، اوښکل** :- نوې قاعده و رواج یا دستور جوړول

**لار** :-(لا+ ر) (اس ، مو ، ج ـــــ رې) د سر وېښتهٔ چې یو خوا بل خوا واړولے شي.نو هغه خالي ځاے یا کرښه شان چې په مینځ کښې ئې جوړه شي. (اُر ـ مانګ)

**لار** :-(لا+ ر) (اس ، مو ، ج ـــــ رې) علاج ، حل ، طریقه لکه : ددې شخړې بله هېڅ لار نشته.

**لار** :-(لا+ ر) (اس ، مو ، ج ـــــ رې) د اوښانو قطار.

**لاربه** :-(لا+ ر + ب) (اس ، مذ ، ج ـــــ بانه) لار ښوونکے ، رهنما ، لاروے ، په لار تلونکے مسافر

**لار پانه** :- (لا+ ر + پا +ن + ړ +ن) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـــــ ړې) راهداري ، د راهدارۍ پروانه ، لار لیک.

**لار غمے** :- (لا+ ر + غ + مے) (اس ، مذ) یو قسم بوټے ، خړ رنګې ، چې وړې وړې پاڼې لري.د مشکونو د بت دپاره پکارولے شي.

**لارغه** :-(لا+ ر + غه) (اس ، ظ) درنګ ، تاخیر ، اټالتیا

په جفا اوتپـــــه وفا ئې لارغه نشي
پر حذر د ناز پـــــرور په قرار داد یم (رحمان بابا)

لږ وخت ، آګاهو ، پخوا ، د وخته

لکـــه عمـــــر لارغـــــه راشي بیا زر درومي
په هجران ئې د خوشحال خټک هائے هاے دے (خوشحال)

ډېر ساعت پس ،

دا دګلوخوئي خصلت دے په چمن کښې
چې راتلهٔ ئې ډېر لارغـــــه لږې مقام دے (خوشحال)

تېر ، پخواني ، ځنډني.

هغـــه تللي یـــاران رانغله لارغهٔ شول
په کاتهٔ مې پسې سترې دوه لېمهٔ شول (هجري)

**لرے ـــــ** :- (ل + رے ـــــ) (پ تر، اس ظفر) ډېر لرې (وخت) بعید (وخت) لرې لارغهٔ نه وو چې دغه کار وشه

**لار لباري** :- (لا+ ر + ل + بـا +ري) (اس ، جم) دا د فریـاد ، فریـاد او انصـاف غوښتنه.

**ـــــ کول** :- فریاد کول ، انصاف غوښتل.

**لار لیک** :- (لا+ ر + لي + ک) (و ـــــ لار پانه)

**لارو** :-(لا+ رو) د ,,لارې ،، مجروري وغېره شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي ,,لارئیو ،، هم لیکلے شي.

**د ـــــ اړه** :- هغه ځاے چرته چې لارې ودرولے شي و د لارئیو د ودربدلو ځاے.

**لاروا لاروا** :-(لا+ ر + وا) (انګ ، اس ، مو ، ج ـــــ وې) د چینجي هغه حالت چې اول اول د اګۍ نه راووځي.وروستو شکلونه بدلوي.

**لاروونے** :- (لا+ ر + وو + نے) (اس ، فا ، ج ـــــ نې) لار وهونکے ، په لاره تلونکے ، لاروے

**لاروهنه** :- (لا+ ر + و + هـ + نَ) (اس ، مو ، ج ـــــ نې) په لاره تلنه ، مزل کونه ، لاره شوکونه ، رهزني.

**لارویې** :-(لا+ ر + و + یې) د ,,لاروے ،، تانیث دے .(جمع ئې لارویانې هم راځي)

**لاروے** :- (لا+ ر + وے) (اس ، مذ ، ج ـــــ وي / ان) په لاره تلـونکے ، لار وهونکے ، راه رو مسافر.

**لاره** :-(لا+ ر) (هـ ، اس ، مو) حیله ، بانه

نور د هجر اور په ځان سهلے نشم
نـور مې مـه غلوه دلبـره په لاره (حسین)

(هـ ـــــ لارا)

**لاره** :-(لا+ ر) (اس ، مو ، ج ـــــ رې) د ,,لار ،، بدل شکل دے .ځینو مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ـــــ چاره** :- (ـــــ چا + ر) (پ تر ، اس ، ج ـــ ې ـــ ې) دود دستور ،قاعده، علاج ، حل.

**ـــــ کتل** :- رو لټول ، لاره پیدا کول ، علاج لټول ، انتظار کول.

**په ـــــ کول** :- په درسته او صحیح لار را اړول.نیکۍ ته را اړول.

لکه : خداے ئې په لاره کړه !

**په ـــــ نه تلل ، چاسره** :- ډېر مخالفت لرل ، کرکه یا نفرت ځنې کول.

**لارۀ** :-(لا+ ر) د ,,لور ،، بدل شکل.چې ځینو مغیره ؤ تورو سره راځي. لکه : د لارۀ لاستے.

**لارې** :-(لا+ رې) (اس ، مو) ,,لار ،، سره تعلق لرونکے.

**بې ـــــ** :- بې قاعدګي ، د دود دستور نه خلاف عمل.

**بې ـــــ کول** :- د قاعدې اصول نه خلاف کار کول ، په اصولو یا دود دستور نه چلېدل

**لارې** :-(لا+ رې) د ,,لار ،، جمع ده - د ,,لار ،، مجروري وغېره شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ـــــ تړل** :- لارې بندول ، په لاره تلل منع کول

چې تړې د لیـدو لارې
څـهٔ دخېر دے مناعه (خوشحال)

**ـــــ ته کتل** :- انتظار کول

**ـــــ چارې** :- (ـــــ چا + رې) (پ تر ، اس ، ج) د لاره چـاره جمـع ده طریقې او علاجونه.لکه : ما ټولې لارې چارې وکتلې.دود دستور ، طور طریقې.

**ـــــ لارې** :- په مختلفو لارو ، په مختلفو طرفونو

چې دې لارې د دیدن راباندې بند کړې
دې ما اوښکې په ګرېوان ځې لارې لارې (خوشحال)

**ـــــ وهل** :- لارې شوکول ، په لارو کښې شوکې کول ، رهزني کول.

**بې ـــــ** :- (بې ـــــ) په غلطه لار روان ، ګمراه. لکه : د خداے بې لارې چا نهٔ دې په لار کړې ! (متل)

**د ـــــ اوړېدل** :- د لارې نه په ډېره کېدل.د لارې نه یو خوا تـه کېدل ، بل تـه لار پرېښودل ، د بل مخه پرېښودل.

لکه : بربنډ د لارې اوړي اوړے نهٔ اوړي. (متل)

**د ـــــ خرڅ** :- (د ـــــ خ + ر (ت) س) (پ تر ، اس ، مذ) هغه خوراکه یا پیسې ټکې چې په سفر تلونکے ځان سره واخلي.زادِ راه

**د ـــــ خنډ** :- د لارې اړیکه ، په کار کښې اړیچه ، هغه سړے یا څیز وغېره چې سړے کامیابۍ ته نهٔ پرېږدي.

**د ـــــ ښویول** :- د لارې نه بې لارې کول ، په غلطه لار روانول ، ګمراه کول.

**د ـــــ ملګرے / مل** :- همسفر ، چې په سفر کښې چا سره یو ځاے روان وي .یا

یو ځای پاتې شوې وي.

خپل عمل د لارې مل (متل)

**د ـــــ وتل / ښوئېدل** :- بې لارې کېدل ، گمراه کېدل . د قاعدې یا د دستور وغېره نه خلاف کار کول.

**لارۍ** :-(لا+ ر + ئ) (انگ ، اس ، مو) په انجن یا مشین چلېدونکې گاډې چې ګڼ کسان په کښې سفر کولې شي. وړوکې بس ، د مسافرانو د سفر لوې موټر . (اصلاً لارۍ پخوا استعمالېدې چې د ننني ویګنونو نه لږې لوئې وې. اوس د هغو په ځای لوې لوې بسونه استعمالېږي. پخواني خلق نننې لوې بسونو ته هم لارۍ وائي . لوې اټوموبائیل چې مال پرې اوړي راوړي. چکړه ، ټرک.

**ـــــ واله** :- (ـــــ وا + ل) (اس ، مذ ، مو) د لارۍ مالک یا چلوونکې.

**لاړ** :-(لا+ ړ) (فعل) د ,,لاړل،، (غېر مستعمل) مصدر نه / څخه د ماضي صیغه. ( ,,ولاړ،، هم لیکلې شي. )

**لاړ** :-(لا+ ړ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) قطار ، سلسله ، حمائل

**لاړ** :-(لا+ ړ) (اس ، مذ ، ج ، ـــــ ونه) مینه ، شفقت ، (و ـــ لاړ)

**لاړجن** :- (لا+ ړ + ج + ن) هغه کس چې د خولې ئې لاړې څاڅي پوهاړ.

**لاړ کېدل** :- (لا+ ړ + کې + د + ل) (مص) تلل

یار مې لاړ شو پــه دا لار ورپسې درومم

که ډېر سترې په دا لار یمه په ځای یم (خوشحال)

**لاړل** :- (لا+ ړ + ل) (مص) غېر مستعمل مصدر دې .چې ځینې فعلونه ترې جوړېږي. او ځینې د تلل مصدر نه.

**لاړل** :- (لا+ ړ + ل) (فعل) د (غېر مستعمل) لاړل* ، یا ولاړل* مصدر نه ماضي (جمع غائب) صیغه. ,,ولاړل،، هم لیکلې شي.

**لاړلېږی** :- (لا+ ړ + لې + ږ +ی) (اس ، مع) د لنډ څانګه ده . لنډ (ملخ ، ملې زاد) دوړ دي.

**لاړن** :- (لا+ ړ + ن) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغه سړې چې د خولې نه ئې (تل) لاړې بهېږي. لاړو . لاړجن

**لاړو** :- (لا+ ړو) (و ـــ لاړجن)

**لاړو** :- (لا+ ړو) (فعل) د (غېر مستعمل) مصدر لاړل* یا د لاړل* نه / څخه د ماضي (جمع) صیغه. لکه : مونږ هلته لاړو.

**لاړه** :- (لا+ ړَ) (اس ، مو ، ج ـــ ړې) د خولې اوبۀ . لُعاب.

د طوطي خوراک شکرې دي خوشحال ته

جګې جګې څۀ خـــورکړه د خـولې لاړه (خوشحال)

توکه ، توکانه.

**لاړه** :- (لا+ ړ) (فعل) د (غېر مستعمل) مصدر لاړل* یا ولاړل* نه / څخه د ماضي (مؤنث) صیغه. لکه : هغه ښځه کلي ته لاړه.

**لاړې** :- (لا+ ړې) (فعل) د (غېر مستعمل) مصدر ,,لاړل،، یا ,,ولاړل،، نه د ماضي (مخاطب) صیغه. لکه : تۀ هلته لاړې.

**لاړې** :- (لا+ ړې) (اس ، مو ج) د ,,لاړه،، جمع ده . د خولې لُعابونه ، د خولې اوبۀ. توکانې ، توکې ، ناړې.

**ـــــ بهېدل** :- د خولې نه اوبۀ بهېدل. لکه : د سپي د خولې نه هر وخت لاړې بهېږي. کوم څیز ته ډېر خواهش لرل. کوم څیز ته (خصوصاً د خوراک څیز) ته پسخېدل.

**ـــــ په خولې کښې وچېدل** :- په خولۀ کښې نمې (توکانې) نه پاتې کېدل ، ډېر زیات حېرانېدل ، ډېر زیات وېرې اخیستل.

**ـــ تېرېدل** :- څۀ طمع پیدا کېدل ، په قلار کېدل حوصله په ځای کېدل.

**ـــــ جن** :- (ـــــ ج + ن) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) لاړن ، لاړو ، هغه سړې چې (تل) ئې د خولې نه لاړې بهېږي . ورخاړې ، مشهور ساګ ، لاړجن

**لاړۍ** :- (لا+ ړ +ی) (اس ، مو) د سسپار هغه لرګې چې پکښې د یوې دسته ورټکوهلې وي.

**لاړې** :- (لا+ ړې) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) برګه ، هغه واړۀ لرګې چې د شهتیر دپاسه اچولې شي . چې څلور ګټیزه جوړه شوې وي نو بیا کړۍ بللې شي.

**لاړې** :- (لا+ ړې) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) د قلبې تیر ، غیسې ، غشې .

**لاړلیس** :- (لا+ ړي + س) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) بائیسکل ، جولاګاډې.

**لازم** :-(لا+ ز + م) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ضروري ، فرض ، خوا مخوا د کولو . ترلې ، ملحق ، نښتې ، نښتونکې (عوامي) نادم ، پښېمانه ، شرمنده خجل. هغه فعل چې مفعول نۀ غواړي. صرف فاعل سره مطلب پوره کوي. د نام په ځای استعمالوي.

**ـــ ,, بودم ،،** ملزم ,,بودل ،، ، قابل الزام ,, بودل،،

چې ښۀ مخ وته نظر کاندې لازم دي

که ئې سترګې و بل مخ وته غړېږي (خوشحال)

**ـــ کول** :- (مص تر) ضروري ګرځول ، فرض ګرځول . نادم کول ، شرمنده کول ، خجل کول.

**ـــ کول ، په ځان** :- په ځان ضروري یا فرض ګرځول.

**ـــ کېدل** :- (مص تر) ضروري کېدل ، فرض کېدل . نادم کېدل ، شرمنده کېدل ، خجل کېدل.

ډار کـــړمه لازم شم چې پرېشانې کـــړې خبـــرې

مشک دې که عنبر دې ستا پرېشان پرېشان کاکل (خوشحال)

**ـــ ګرځول** :- ضروري ګرځول ، فرض ګرځول.

**ـــ ګڼل** :- ضروري ګڼل ،هرو مرو د کېدلو کار یا خبره ګڼل.

**ـــ ملزوم** :- (ـــــ م + ل + زو + م) (فر تر ، اس ، ج) دوه داسې څیزونه چې یو وي نو بل هم ورسره ضرور وي . یو بل سره ترلي څیزونه ، چې یو څیز په بل پورې اړه لري. یو بل سره متعلق څیزونه یا کارونه.

**ـــ والې** :- (ـــ وا + لې) (اس ، مذ ، ج ـــ لې) لازم توب ، لازم کېدلو حالت ، ضرورت ، ضروري کېدنه.

**غېر ـــــ** :- (غې + ر ـــ) (ع ، تر ، صف ، مذ ، ج ـــ ه) غېر ضروري.

**لازماً** :- (لا+ ز + م +ن) (ع ، تف) ضروري طور سره ، خوا مخواه ، ضرور په ضرور ، هرومرو.

**لازم الاجزاء** :- (لا+ز+م+ل + ز+ ج+ زا) (ع ، تر ، صف) ضرور د کولو ، هغه کار چې خوامخواه د کولو وي.

**لازمول** :- (لا+ ز + م + ۆ + ل) (مص) (و ـــ لازم کول).

**لازمه** :- (لا+ ز + مَ) (اس ، مو ، ج ـــ ات) د کوم کار یا مقصد سره متعلق ضروري سامان یا برخه .

**لازمي** :- (لا+ ز + مي) (ع ، تف) ضروري ، فرض ، هرو مرو د کولو . د ,,لازم ،، په معنې کښې راځي. لکه : لازمي مضمون.

**لاږ** :- (لا+ ګ/ ژ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (مروت) غښتلې شوې پړې ، یا مزې.

**لاس** :- (لا+ س) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د بدن مشهور عضو ، (ف : دست ، ه : هاتهـ) طاقت ، قوت ، وس. استعداد ، قابلیت ، دخل ، مداخلت.

**ـــ اچول ، په چا** :- دوستي جوړول ، (کوم کار ته) اماده کول.

**ـــ اچول (په څۀ کښې)** :- په کوم کار شورو کول ، په کوم کار کښې **برخه** اخیستل. لکه : دوي داسې ناوړه چمو ته لاس اچولې دې. دخل ورکول

**—— اچول (چاته)** :- ګرفتاره ؤل ، نیول (پولیس ورته لاس وانۀ چاوۀ)

**—— اخیستل** :- / **—— اغیستل** :- مداخلت نۀ کول ، دخل نۀ ورکول ، لاس برداره کېدل ، تعلق یا په کوم کار کښې برخه اخیستل بندول، امداد او مرسته بندول ، ذمه واري ختمول۔

**—— اړي** :- (—— ا + ړي)(پ تر ، اس ، ج) د ضرورت څیزونه ، لازم څیزونه۔

**—— اړۍ** :- (—— ا + ړ + ۍ)(پ تر ، صف ، مو) د ,,لاس اړے،، تانیث دے۔

**—— اړے** :- (—— ا + ړے)(پ تر ، صف ، مذ ، ج—ي) هغه چې لاس ئې بند وي۔تنګ لاسے محتاجه۔

**—— انګۍ** :- (—— ا + ن + ګ + ۍ)(اس ، مو) یوه لوبه ده چې په کښې یو کاڼے د یو لاس نه بل لاس ته زر زر اړوي۔

**—— اباسل** :- / **—— اېستل** :- / **—— وېستل** :- بې دخله کول، تعلق یا دخل ختمول۔

**—— باړه** :- (پ تر ، اس ، مو ، ج—ړې) مزدوري ، د لاس محنت ، معاوضه

**—— بر کېدل** :- وس رسېدل ، قابو موندل ، غالب کېدل ، برے موندل، غلبه موندل۔

خدایه خط د یار له مخه لرې لیرې
په اسلام باندې سر مه شه لاس د کفر (حمید)

**—— برے** :- (—— ب + رے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج—ري) هغه چې لاس ئې بره وي۔فاتح ، غالب ، برے موندونکے۔

**—— برے موندل** :- غالبه کېدل ، غلبه موندل ، برے موندل ، لاس بر کېدل ، مسلط کېدل ، زور قوت موندل۔

**—— بندېدل** :- پیسې ټکې نۀ لرل ، تنګسیا راتلل، تنګ دسته کېدل۔

**—— پراخي** :- (—پ + را + خي)(پ تر ، اس ، مو) ارت لاسي ،سخاوت ، سخیان۔

**—— پراخې** :- (پ + را + خې)(و —— لاس پرانیتې)

**—— پرانیتي** :- (—پ + را + ني + تي)(پ تر ، صف ، مذ) ارت لاسے ، سخي۔

**—— پر غوږو نیول** :- توبه اېستل ، ویزاري ځرګندول۔

**—— پرېکول** :- لاس غوڅول ، لاس قطع کول (لکه د غل) ۔زور طاقت سلب کول ، مجبوره کول د څۀ کار کولو جوګه نۀ پرېښودل۔بېکاره کول ، د کار ذریعه بندول۔

**—— پرې وینځل** :- طمع قطعي کول ، مایوسه کېدل۔

تـــل کــــه دا وي د خوبۍ طمطراق ستا
نور دې لاس له ځان پرې وینځي عشاق ستا (خوشحال)

**—— پړک** (—— پ + ړ + ک)

**—— پړق** :- (—— پ + ړ + ق)(پ تر ، اس ، مذ) هغه اواز چې دواړه لاسونه په خپلو کښې په زوره وهلو سره پیدا کېږي ۔تالۍ ، تاړۍ ، خوشحالي ، شادماني۔

**—— پلې** :- (—— پ + لې)(پ تر ، صف) فلوس ، توري ریګۍ۔

**—— پورته کول** :- د دعا دپاره لاسونه پورته کول۔دعا کول۔د نذر نیاز په څېر دعا کول۔د خیرات په څېر (د خوراک نه اول) دعا کول۔

**—— پورې کول** :- شورو کول ، په کور کار پېل کول ، کوم کار شروع کول۔

**—— په ځیګر ټکول** :- لاس په سینه وهل ، ذمه واري قبلول۔ذمه وهل ، ذمه اخیستل۔

**—— په خولۀ** :- پټ ، پټ په پټه۔

عشق د بـــورې د بدنامي کار اوکړ
لاس په خولۀ اېښې ژړا کړم شب و روز (حمید)

**—— په خولۀ کښېښودل** :- د چپ پاتې کېدو اشاره کول ، د خاموشۍ اشاره کول

**—— په دواړو غوږو نیول** :- توبه اېستل ، ویزاري ځرګندول۔

لاس مې نیولي دي په دواړو غوږو
تـــرې تــــوبه چـــې هیڅکاره وي (خوشحال)

**—— په رېږه کول** :- عهد کول ، د یو کار د کولو یا د نۀ کولو پخه اراده کول۔

چې په تېرو چارو لاس مړې افسوس کړې
ولې لاس پـــه رېــــږه نــــه کاندې لااوس (حمید)

**—— په سر کېدل** :- تعلق یا دخل ختمول ، لاتعلقه کېدل۔

**—— په سینه وهل** :- لاس په ځیګر ټکول ، ذمه اخیستل ، ذمه داري قبلول۔

**—— په غوږ لرل** :- توبه اوباسل ، ویزاري ځرګندول ، لرې اوسېدل ،

**—— په لاس** :- (پ + لا + س)(پ تر ، مف) زر ،فوراً ، مخې سره۔

معلوم شوې لاس په لاس
د یـــارانو کـــوز و پاس (حمید)

**—— په لاس جنګ** :- د جنګ هغه حالت چې سپاهیان د نزدې نه په خپله کښې کښېوځي۔دست په دست جنګ ، د تورو جنګ۔

**—— په لاس کښېناستل** :- بې کاره کښېناستل ، هېڅ کار نۀ کول۔

**—— په لاسه** :- (—— پ + لا + سَ)(و —— لاس په لاس)

لاس په لاسه بهشت دا دے اے خوشحاله
چې خپل یار سره یو دم فراغت کښېني (خوشحال)

**—— په لستوني** :- (—پ + ل + س + تو + ن + ړ + ي)(پ تر ، صف) مجازاً ډېر نزدې ، قربت ، شېر و شکر۔

**—— په لستوني کېدل** :- ډېر نزدې کېدل ،قربت موندل ،شېر و شکر کېدل۔

**—— په لمن لګول (د چا)** :- د چا امداد غوښتل ، د چا تر لمنې پورې ځان تړل۔

زر به ورسي پـــه داد لـــه کمینې
لګولے ما حمید ئې په لمن لاس (حمید)

**—— په نامه** :- (—— پ + نا + مَ)(پ تر ، تف) په ادب ، فرمان برداري۔

**—— پیلے** :- (—— پې + لے)(اس ، مذ ، ج—— لي) لاس ماغے ،دسکله ، (ف : دستکش)۔

**—— تر زنې** :- (—تر + ر + ز + نې)(پ تر ، صف) لاس راټول کړے ، په فکر کښې ډوب۔

چې په سوال اوږدوې لاس چاته حمیده
ښـــۀ ئې وړے لاس تـــر زنې بې نــــوا (حمید)

**—— لاس تر زنې کښېناستل** :- په فکر کښې ډوب کښېناستل ، مایوسه کېدل۔

**—— تړلے** :- (—— ت + ړ + لے)(پ تر ، مف ، ج—لي) هغه چې لاس ئې تړلي شوي وي۔ګرفتار ، بندي۔لاس په نامۀ (تعظیماً)۔

**—— تړلے راوستل** :- داسې حالت کښې راوستل چې لاسونه ئې ورله تړلي وي۔ مجبور راوستل ، د قېدي یا بندي په شکل کښې راوستل۔

**—— تړونے** :- (—— ت + ړو + نے)(پ تر ، اس ، مف) هغه چې لاس ئې تړلے شوے وي۔راګېر ،قېدي۔

کلـــه مئین زړۀ په توبــــه اوړي هغه حمید
نوي خلاصیدونے چې یو ځل شي لاس تړونے حمید)

**—— تش ,, بودل ،،** :- (و —لاس خالي ,, بودل ،،)

**—— تنګه یا تنګے کېدل** :- مالي حالت خرابېدل ،تنګدسته کېدل ، لاس خالي کېدل ، پیسې ټکې نۀ درلودل ، عاجز یا محتاجه کېدل۔

**—— تنګي** :- (—— ت + ن + ګي)(پ تر ، اس ، مو) د لاس تنګېدنه ، تنګدستي ، غریبي حاجتمندي۔

**—— تنګي راتلل** :- تنګدستي راتلل ، عاجزي راتلل ، مالي حالت خرابېدل ، عاجز کېدل ، محتاجه کېدل۔

ـــــ **تنګېدل** :- پیسې ټکې نهٔ پاتې کېدل ، غریبي راتلل ، تنګ دسته کېدل.
ـــــ **ته راوستل** :- (و ـــــ تر لاسه کول).
ـــــ **ته کتل ، دچا** :- طمع کول د چا نه ، امید لرل د چانه.
ـــــ **تېرول ، په څهٔ** :- په کوم څیز باندې لاس په مزه مږل.لکه : پـه نس ئې لاس تېرول وئیل ئې-----
ـــــ **تېره** :- (ـــــ تې + رَ) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـــــ رې) لاس تېرونه ،مسح.
ـــــ **تېره کول** :- مسح کول ، لاس په څهٔ څیز تېرول.
ـــــ **تېره کېدل** :- مسح کېدل ، لاس په کوم څیز تېرېدل.
ـــــ **خالي ,, بودل** ، ، :- لاس تش بودل ، پیسې ټکې نهٔ لرل.
ـــــ **ختل** :- لاس جدا کېدل ، د لاس کار بس کېدل.

هسې زهٔ د ځان په غوښو عشق اخته کړم
لکـه نه خـېژي لـه ځـانه د پمن لاس (حمید)

ـــــ **خوزول** :- زر زر کار کول ، لاس پرې ښورول.
ـــــ **خوندي کول** :- لاس بندول ، لاس تړل ،د لاس نه کار نه اخیستل.

ژبـه بند کړه لـه ګفتاره
لاس خوندي کړه له آزاره (خوشحال)

ـــــ **دې ازاد دے** :- (جمله) ستا مخه ازاده ده.چې څهٔ کول غواړې یا چې څهٔ کوے شې هغه وکړه. عموماً مخالف ته وئیلے شي.چې څهٔ کوے شې هغه وکړه.
ـــــ **دبرې کار دے** :- چې د چا لاس بر دې یعني څوک چې زورور دے.ګټه یا فائده هم هغه ته رسي.
ـــــ **دې خلاص دے** :- (و ـــــ لاس دې ازاد دے) چې څهٔ کول غواړې هغه وکړه.
ـــــ **د خولې اخیستل** :- په وېنا سرکېدل ، په خبرو شورو (شروع) کول. لکه : هغهٔ لاس د خولې واخست چې خوار شې دا دې څهٔ په مصیبت اخته کړم.
ـــــ **راښکل / تېرول ، دچا په سر** :- د مینې محبت اظهار کول ، شفقت ښکاره کول ، څرګندول. د چا (خوار یتیم وغېره) سرپرستي قبلول.
ـــــ **رسېدل** :- زور رسېدل ، وس رسېدل ، د طاقت قوت دننه ,,بودل ، ،.
ـــــ **روغبړ** :- (ـــــ رو + غ + ب + ړ) (پ تر ، اس ، مذ) پـه روغبړ کښې لاس ملاوَول ،مصافحه ، په جوړ تازه کښې لاسونه سره نیول.
ـــــ **سرهٔ** :- (ـــــ س + ر) (پ تر ، اس ، جم) د لاس سرهٔ ، د لاس سرخي ، ګټه ، د لاس (د کار) عوض ، خصوصاً د قصاب ګټه.
ـــــ **سرهٔ کول** :- په لاسونو نکریزې / نکریځې پورې کول.
ـــــ **سنګېدل** :- خوارېدل ،مفلس کېدل ، ناداره کېدل.
ـــــ **ښکلول** :-
ـــــ **مچول** :- لاس چومـل ، لاس لـه بوسه ورکول ، ډېر احترام کول ، عقیدت څرګندول.
ـــــ **ښورول په څهٔ** :- (یو کار) زر زر کول ، لاس خوزول.
ـــــ **کتوے** :- (ـــــ ک + ت + وے).
ـــــ **کوځے** :- (ـــــ کو + (ت) سے) لاس ته کتونکے ، کوز لاسے ، زبردست.
ـــــ **کول** :- امداد کول ، مرسته کول.
ـــــ **ګټه** :- (ـــــ ګ + ټَ) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـــــ ټې) د لاس ګټه ، د لاس د محنت ، مزد.
ـــــ **ګرزاندے / ګرځاندے** :- (ـــــ ګ + ر + زا + ن + دے).
ـــــ **ګرزے / ګرځے** :- (ګ + ر + زے) (اس ، مذ) هغه کس چې بغېر د دوکانه په ګرځېدلو څیزونه خرخوي.
ـــــ **ګرزے / ګرځے** :- (ـــــ ګ + ر + زے) (پ تر ، صف) په لاس ګرځېدونکے ،دست ګردان
ـــــ **ګرے** :- (ـــــ ګ + رے) (صف /اس ، مذ ، ج ـ ي ، مو ـ ه) امداد کوونکے ، مرستي ، لاس مرستے ، معاون ، لاس ښوونکے.
ـــــ **ګیر** :- (ـــــ ګي + ر) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان) قېدي ،بندي ،اسیر.
ـــــ **ګیر** :- (ـــــ ګي + ر) (فپ تـر ، صف ، مـذ ، مـو ـــــ ه) لاسو نیوونکے ، مددګار ، دستګیر.
ـــــ **لاس پېژني / پیچني** :- (محاوره) کوم لاس نه چې یو څیز (قرض وغېره) واخستې شي هم هغه لاس له ئې واپس ورکول پکار دي.
ـــــ **لاندې** :- (ـــــ لا + ن + دې) (پ تر ، صف) د لاس د لاندې ، ماتحت . لکه : لاس لاندې خلق.مغلوب ، د حکم لاندې ، محکوم.
ـــــ **لانـدې ,, بـودل** ، ، :- د چـا د طاقـت زور قـوت د لانـدې بـودل، د چـا قرضدارے یا حاجتمند بودل.
ـــــ **لاندې کول ، دچا** :- دچالاس په خپله قبضه کښې راوستل.مجبوره کول. قرضدارے کول.یا د چا نه څهٔ داسې څیز په قبضه کښې کـول چې لـه دې سببـه هغه هېڅ نهٔ شي کولے.
ـــــ **لرل (په کوم کار کښې)** :- دخل لرل ، برخه اخستل.
ـــــ **لګول** :- خپیرې لګول ، جنګ جګړه کول ، مشتې ګرېوان کېدل.
ـــــ **لندول** :- (بل) اودس کول.
ـــــ **لنډول** :- دخـل کمـول ، ببخـې دخـل نهٔ ورکـول ، امـداد کمـول یـا امـداد ببخې نهٔ ورکول.
ـــــ **له خولې اخیستل** :- په بده وېنا یا په کنځلو شورو (شروع) کول ، پـه خبره شورو کول.
ـــــ **لیک** :- (ـــــ لي + ک) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د لاس لیکلے شوے خط یا دستاویز وغېره.دستخط .
ـــــ **لیک کول** :- دستخط کول.
ـــــ **لیکول** :- پـه لاس لیکـل ، دستاویز وغېره پـه خپـل لاس لیکـل ، پـه تحریر کښې راوستل. دستخط کول.
ـــــ **لیکېدل** :- په لاس لیکلے کېدل ، دستاویز وغېره په لاس لیکلے کېدل ، په تحریر کښې راتلل ، دستخط کېدل.
ـــــ **لیکېدل** :- په تحریر کښې راتلنه ، دستاویز تیارېدنه.
ـــــ **مـاغو** :- (ـــــ مـا + غـو) (پ تـر ، اس ، مـذ) لاس ماغـه ، دسـکله (ف : دستکش)
ـــــ **مږل / مښل** :- لاس مروړل ، افسوس کول ، ارمان کول.
ـــــ **موږل** :- (و ـــــ لاسونه مروړل).

ځکه لاس لکه مګس په افسوس موږم
چې شارهٔ شم د سرو شونډو له شربته (حمید)

ـــــ **موندل** :- وس موندل ، طاقت یا تسلط موندل.
ـــــ **مینځل** :- (و ـــــ لاس وینځل).
ـــــ **نجت** :- (ـــــ ن + ج + ت) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) دستاویز.
ـــــ **نجتول** :- (و ـــــ لاس لګول).
ـــــ **نهٔ ,, بودل** ، ، :- لاس نهٔ لرل ،طاقت نهٔ ,, بودل ، ، بې وسه ,,بودل، ، زور نهٔ لرل

کـه دلـے د خوشـحال لاس پـه ظـالم نشـته
د قیامــت پــه ورځ ئــې خـدا ے مکړه معــاف
(خوشحال)

ـــــ **نهٔ تورېدل ، دچا** :- د چا هېڅ نهٔ پکارېدل ، هېڅ کار یا امداد چا سره نهٔ کول ، خسنې نهٔ پورته کول (چاله).

ـــ نیول ، دچا :- امداد کول ، لاس نیوه کول ، بیعت کول.
ـــ نیولے :- (ـــ ني + و + لے) (پ تر ، اس ، مف ، ج ـــ لي) تر لاسه نیولے ، دستګیر ، ګرفتار کړے.
ـــ نیولے راوستل :- تر لاسه نیولے راوستل ، په قبضه کښې کړے راوستل ، ګرفتار کړے راوستل.
ـــ نیونه :- (ـــ ني + وُ + نَ) (پ تر ، حمص) تر لاسه نیونه ، مجازاً امداد کونه ، دستګیر کونه.بیعت کول ، مرید جوړېدل.
ـــ نیونه کول :- امداد کول ، دستګیري کول.بیعت کول ، مرید جوړېدل.
ـــ نیوه :- (ـــ ني + وَ) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ وې) لاس نیول د چا ، بیعت ، مریدي.
ـــ نیوه کول ، دچا نه :- مرید جوړېدل، بیعت کول.
ـــ نیوے :- (ـــ ني + وے) (و ـــ لاس نیوه).
ـــ نیوے کول :- (و ـــ لاس نیوه کول).
ـــ و پښې :- (ـــ (و) پ + شې).
ـــ و ښپې :- (ـــ (و) خ + پې) (پ تر ، اس ، ج) لاسونه او پښې (خپې) د بدن ډېر د کار اعضاء ، مجازاً ډېر زیات پکاربدونکي.
ـــ و پښې ټکول :- بې صبري او ناقلاري ښکارندول ، اضطراب ښکارندول.
ـــ و پښې / ښپې غورزول :- د ناروغه سړي خپل اضطراب ښکارندول ، بې تابي او ناقلاري ښکارندول.
ـــ و پښې / ښپې وهل :- کوښښ کول ،سعي کول،جدوجهد کول.
ـــ وچ :- (ـــ وُ + چ) (و ـــ لاس وچونے).
ـــ وچونے :- (ـــ وُ + چو + نے) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ني) هغه کپړه چې د وینځلو نه پس پرې لاسونه وچولے شي.تولیه ، دسمال.
ـــ و دست نه ,, بودل ،، :- طاقت نهٔ لرل ، بې وسه ,,بودل ،، خوار مفلس ,,بودل ،،

خهٔ کرم لاس و دست مې نشته ، قلندر یم
ګښه ما به دنیا و بازله ګُله (خوشحال)

ـــ ور اچول :- جګړه کول ، جنګ کول ، خپړې لګول.
ـــ (ور) اوږدول :- سوال کول.

چې په سوال اوږدوي لاس چاته حمیده
ښهٔ ئې وړے لاس تر زنې بې نوا (حمید)

ـــ ورغزول :- امیدواره ,, بودل ،، .طمع لرل.
ـــ ورکړه :- (ـــ و + ر + ک + ړ) (پ تر ، اس ، مو) لاس ورکونه ، مصافحه ، لاسونه ملاوَوُنه.
ـــ ورکول :- مصافحه کول ، جوړ تازه کول.امداد کول ، دستګیري کول.
ـــ وزرې :- (ـــ و+ ز+ رې) (پ تر ، اس ، ج) لاسونه او وزرې .مجازاً مددګار ، لاس و پښې.
ـــ وښکل :- لاس اخیستل ، دعویٰ پرېښودل ، طمع قطع کول.
ـــ و ګردن کېدل :- (ـــ (سو) ګ+ر+ د+ن ) لاس په غاړه کېدل ، غاړه غټې کېدل

که رقیب په داخبر شي ترو به څهٔ کا
چې له یاره سره زهٔ لاس و ګردن یم (خوشحال)

ـــ ولل ، ځنې :- لاس وینځل ، مایوسه کېدل ، طمع غوڅول.
ـــ ولونے :- (ـــ و + لو + نے) (پ تر و اس ، مذ ، ج ـــ ني) د لاسونو د وینځلو لوښې ، لګن ، لاس وینځونکے.
ـــ ونډے :- (ـــ و+ ن + ډے) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ي) دست بند (مهر واله) سند ، حُجت.

ـــ وهل ، په ځان :- صفائي کول ، ځان جوړول.
ـــ وهل ، په چا :- دلاسه کول ، تسلي کول.
ـــ وهل ، په څهٔ کښې :- دخل ورکول ، مداخلت کول ، په کوم (خراب) کار کښې کوښښ کول. سراغ لګول ، پته لګول.
ـــ وهونکے :- (ـــ و + هو+ ن +کے) (پ تر ، اس ، فا ، ج ـــ کي) کوښښ کوونکے سراغ لګوونکے ، په څو کښې اوسېدونکے.
ـــ وهونے :- (ـــ و + هو + نے) دخل ورکوونکے (په کوم کار کښې) کوښښ کوؤنکے.
ـــ وینځل ، دکوم کار نه :-
ـــ پر لولل / :- مایوسه کېدل ، طمع قطعي کول.
ـــ یله لګول :- جنګ سره کول ، خپړې لګول.
ـــ یوې :- (ـــ ي + وې) (پ تر ، اس) یو موتي کېدنه ، اتفاق.
ـــ لوے کول :- اتفاق کول ، یو موتي کېدل.
په ارت ـــ :- (پ + ا + ر + ت ـــ) (پ تر ، تف) په پرانستي لاس ، سخاوت سره ، په ارت مټ.
په پراخ ـــ ژوند کول :- په ارت مټ خرڅ سره ژوند تېرول.
په ـــ :- په قبضه کښې ، موجود ، نغد ، که پور وي که په لاس.
په ـــ اخیستل :- په کوم کار وغېره شورو (شروع) کول.عمل شروع کول.

سل ناسازې په لاس واخلي
چې بد ذات شي مې پرست (خوشحال)

په ـــ راتلل :- په قبضه کښې راتلل.

نهٔ به تر کو وړے زړهٔ راشي په لاس کښې
نهٔ به مړې شي د ګور بېرته ستانهٔ (حمید)

په ـــ راوستل / راوړل :- په قبضه کښې راوستل.
په ـــ کښې اخیستل :- په کوم کار په خپله عمل کول ، یا په خپله قبضه کښې راوستل.
په ـــ کښېوتل :- په لاس ورتلل ، په قابو کښې ورتلل / راتلل.

ښهٔ باز دې د خوشحال خټک خاطر په لاسو کښېوت
په قدر ئې خبر شه چېرې نه په لړئې پلورې (خوشحال)

په ـــ کول :- په لاس یا لاسونو کښې اچول ، اغوستل.

چې په لاس کا ګُل اندامه سپین وکښې
له غېرته شي هلال وښې وښې (حمید)

په ـــ نیول :- اختیارول ، په عمل کښې راوستل.

اورنګزېب بادشاه که تل کا هسې چارې
لکه اوس ئې په لاس ونیوې امان (خوشحال)

په ـــ ورختل :- نقصان رسول ، په پښه / ښپه ورختل. لکه : څهٔ په لاس یا په ښپه / پښه خودې نهٔ یم ورختلے.
په لوے ـــ :- (پ + لو + ئے ـــ) (پ تر ، صف) ډېر زیات .لکه : په لوے لاس د خپلو کوچنیانو په مغزو کښې د بلاوو او بڼو تصورېږې اوباسي.
د دوستۍ ـــ ور اوږدول :- د دوستۍ خواهش ښکارندول.
د ښي ـــ ورکړه :- خېر خېرات ، صدقه.
د ګس / ګیڼ ـــ کار :- اسان کار ، چې ښي لاس په ځاے په ګس لاس هم کولے شي.
د ـــ بند :- (د ـــ ب + ن + د) (پ تر ، اس ، مذ ،ج ـــ ونه) د لاس هغه حصه چې بنګړې په کښې اچولے شي.یا ګړی پرې تړلے شي. (اُر ـــ کلائی).
د ـــ خیره :- (د ـــ خي + رَ) مجازاً ګټه، دولت ، پیسې ، ټکې.
د ـــ غوړې :- (د ـــ غ + و + ړې) (پ تر ، اس ، جم) سوچه غوړې ،په خپل

لاس شاربلي او وېستلي غوړي. لکه : د لاس غوړي خوري.

**د ــــ و پښو خدمت کول** :-

**د ــــ وخپو ــــ** :- هغه خدمت چې په لاسونو پښو کېدلے شي. عموماً غريب خلق وائي چې مال دولت راځخه نشته خو چې کوم خدمت په لاسونو او پښو کېدے شي هغه به کوم.

**ديو ــــ دزور** :- هغه چې د چا د يو لاس زور نهٔ لري. کمزوري سړي ته وئيلے شي. چې تهٔ خو زما د يو لاس د زور هم نهٔ ئې.

**ديو ــــ دزور نهٔ بودل** ،، :- کمزورے بودل ، د مقابلې طاقت نهٔ لرل.

**ښے ــــ** :- (خے / شے ــــ) لوے تعاون ، لوے مددګار.

**يو ــــ کېدل** :- يو موټے کېدل ، اتفاق کول.

**لاسا** :- (لا+ سا / سَ)(اس ، مو) يو قسم سلېښناکه ماده چې د بوټو نه حاصلېږي. ګوند.

**لاستور** :- (لا+ س + ت + ؤ + ر)(پ تر ، صف، مذ ، مو ــــ ه) لاستے لرونکے ، لاستي واله ، دستې واله ، موټي واله ، هغه څيز چې د نيولو دپاره موټے لري.

**لاستورکے** :- (لا+س + ت + ؤ + ر + کے).

**لاستورګې** :- (ــــ ګے)(و ــــ لاستور).

**لاستوره** :- (لا+ س + تو + ر)(اس ، مو ، ج ــــ رې) ملاغه ،لويه څمڅۍ.

**لاسته** :- (لا+ س + تَ)(اس ظر) طرف ، لورې ، لور ، اړخ ، علاقه ، سيمه ، منطقه.

**لاستۍ** :- (لا+ س + ت + ی).

**لاستے** :- (لا+ س + تے) لوښے.

**لاستے** :- (لا+ س + تے)(اس ، مذ ، ج ــــ تي) د کومې الې د نيولو حصه ، دسته. لکه : د تبر لاستے.

**لاستيک** :- (لا+ س + تي + ک)(ف ، جم) د ربړ يو خاص قسم چې ټکرو ته وغېره ترې جوړولے شي.

**لاسخه** :- (لا+س + خَ)(اس ،مذ) مالک ، د لاس واله، ذواليد.

**لاسکلے** :- (لا+ س + ک + لے)(اس ،مذ ، ج ــــ لي) وړوکے لور، کاتړۍ ،لرۍ.

**لاسماغه** :- (لا+ س + ما + غَ)(اس ، مو ،ج ــــ غې) د څرمنې هغه خاص دستانه چې د باز په لاس د کښېنولو دپاره اغوستے شي.

**لاسنجت** :- (لا+ س + ن + ج + ت)(پ تر ، اس ، مذ) لاس لګونه ، خپړې لګونه.

**لاسوندے** :- (لا+ سو + ن + دے)(اس ، مذ ، ج ــــ دي) سند ، باهو يا د باهو په شان د لاس يو کالے ، د لاس يوه ګاڼه ګېنه دسته بند.

چــــې هــلال ورتــــه ولاړ په ټيټه ملا دے
هسې برېښ دے ستا د مټ په لاسوندي کښې (حسين)

**لاسونه** :- (لا+ سو + نَ)(اس ، مذ ، ج) د ,,لاس ،، جمع ده.

**ــــ غورځول** :- په بحث وغېره کښې لاسونو سره اشارې کول.

**ــــ لګول** :- خپړې لګول ، جنګ جګړه کول ، مشتې ګرېوان کېدل.

**ــــ لګېدل** :- جنګ جګړه کېدل ، خپړې لګېدل.

**ــــ مروړل** :- افسوس کول ،ارمان کول ، پښېمانه کېدل.

**ــــ ورکول** :- د يو بل لاسونه نيول. مصافحه کول ، د جوړ تازه دپاره يو بل سره لاسونه ملاوَؤل. ګوتې تر ګوتې نيول.

**د ــــ پښو خدمت** :- هغه خدمت يا کار چې لاسونو پښو سره کېدے شي.

**لاسه** :- (لا+سَ) د ,,س ،، بدل شکل دے چې ځينو مغيره تورو سره راځي. (خصوصاً د عدد اسمونو سره).

**بې ــــ لستوڼے** :- تش لستوڼے ، مجازاً بې قبضه سړے.

کار په تش لستوڼي نهٔ کېږي بې لاسه
لاس په زيره کړه بې لاسه استين مه شه (رحمان بابا)

**تر ــــ کول** :- په خپله قبضه کښې راوستل ، لاس ته راوستل ، په خپل ملکيت کښې راوستل.

**د ــــ** :- په وجه ، په سبب ، لکه : دا هر څهٔ رابانديې ستا د لاسه وشول.

**د / له ــــ کېدل** :- وس لرل ، د کوم کار دپاره قوت طاقت يا دولت لرل.

**د / له ــــ وتل** :- د قبضې نه وتل.

**دوه دوه ــــ** :- مقابله ، لږه شان (مقابله).

**دوه دوه ــــ مقابله کول** :- لږه شان مقابله کول ، يو پاڼۍ لوبه کول ، (شطرنج وغېره).

**دوه ــــ** :- (د + و ــــ)(پ تر ، تف) مجازاً تش لاس.

لکه : اوس چې دومره موده پس راغے نو دوه لاسه راغے.

**دوه ــــ دوه پښې** :- (پ تر ، تف) تش لاس.

لکه : ښځه ئې دوه لاسه دوه پښې د کوره ووېسته.

**له ــــ اچول** :- د لاس نه غورځول ، پرېښودل ، ترک کول.

حکم، حکم ستا دے، که اشتي کوے که جنګ کړے
مالــــه لاســــه واچوۀ اوس حــــکم اختيار خپــــل (خوشحال)

**له ــــ ورکول** :- د خپلې قبضې نه بل له ورکول.

**لاسي** :- (لا+ سي)(صف) هغه څيز چې په لاس ترې کار اخستے شي. مصنوعي ، د لاس جوړ شوے.

**لاسي** :- (لا+ سي)(صف) د خپل لاس جوړ کړي ، سوچه. لکه : لاسي کُرت او غوړي.

**ــــ بم** :- (ــــ ب + م)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) هغه بم چې په لاس غورځولے شي. دستي بم. (هينډګرنيډ).

**ــــ کڅوړه** :- (ــــ ک + (ت) سو + ړ)(اس ، مو ، ج ــــ ړې) هغه کڅوړه يا تيلۍ چې په لاس کښې ځان سره ګرځولے شي. (انګ هينډبيګ).

**لاسياني** :- (لا+ س + يا + ني)(اس ، مع) سپين ترين دي. د لاسيانو څانګې دادي. خوئېداني، متياني ، برهماني او بياني.

**لاسېزۍ** :- (لا+ سے + ز + ی)(اس ، مع) د اوړيازئيو څانګه ده. اوړيازي (غنجي) زرکون دي.

**لاش** :- (لا+ ش)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) مړے ، د مړ شوي بنيادم بې ځانه وجود ، ميت.

**لاشته** :- (لا+ ش + ت)(و ــــ لښته).

**لاشتې** :- (لا+ ش + تې)(و ــــ لښتۍ).

**لاشک** :- (لا+ شک + ک)(ع تر ، صف) هغه خبره وغېره چې شک شبه په کښې نهٔ وي.

**لاشوړه** :- (لا+ شو + ړ)(اس ، مو ، ج ــــ ړې) د يوې لوئې ونې نوم چې ميوې ته ئې هم لاشوړه وائي. چې د سلېښ نه ډکه وي. او وړې وړې دانې ئې وي. (هـ : لسوړه).

**لاشه** :- (لا+ شَ) (اس ، مو ، ج ــــ شې) د مړ شوي څيز بدن ، لاش ، لشه ، نښ، لشکه ، مجازاً ډېر مانده ، نرے نروچکے.

بخته کله به له ورايه رابنکاره شې
چې مې ښهٔ تر عراقي شي لاشه خر (خوشحال)

**لاشے** :- (لا+ شے)(صف) هېڅ نه ، سپک ، ذليل.

**ــــ ګڼل** :- هېڅ نهٔ ګڼل ، ډېر سپک او ذليل ګڼل.

**لاښ** :- (لا+ خ/ش)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د غر لوے کمر. هغه باغ چې د

ونو نه يې ټوله ميوه وانولې شي. او په بوټو هېڅ پاتې نشي.

چــــې د عمر باغ ئې لاښ شي
باندې ساز به د مرګ غاښ شي (ارزاني)

**ـــــ کول** :- د باغ نه ميوه داسې شوکول چې په بوټو کښې هېڅ پاتې نشي.

**ــــ کېدل** :- د باغ نه ميوه داسې انولې کېدل چې په بوټو کښې هېڅ پاتې نشي.

**لاښول** :- (لا+ خ/ش + ؤ + ل) (مص) د باغ نه ميوه شوکول ، د خربوزو وغېره د پټي نه خربوزې ټولول.

**لاښي** :- (لا+ خي / شي) (اس صف) په باغ کښې هغه دانه نيمه کومه چې د ميوې د انولو نه پس په بوټو کښې پاتې شي. او بيا ئې غريب خلق ځان له ټولوي.

**لاښے** :- (لا+ خے / شے) (اس ، مذ ، جـــ ښي) قبرستان ، گورستان ، مقبره ، اديره

**کېر ـــ** :- (ک + پ + ر ـــــ) (پ تر ، اس ، مذ) د گبر (اتش پرست) خلقو مقبره د اور نمانځلو قبرستان.

**لاغ** :- (لا+ غ) (ع ، اس ، مذ ، جـــ ونه) لوبه ، بازي ، مستي ، ټوقه ټقاله ، وشته. مکر ، فريب ، دوکه ، دروه ، ټګي.

**لاغر** :- (لا+ غ + ر) (ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) مانده ، ډنګر ، نرے نروچکے ، کمزورے.

**لاغرزئ** :- (لا+ غ + ر + ز + ئ) (اس ، مع) د شمشېر زئيو څانګه ده. شمشېر زئ (رکهنوال) لونې دي.

**لاغري** :- (لا+ غ + ري) (ف ، اس ، مو) مانده توب ، ډنګرتيا ، کمزوري.

کــه دې مينـــه هـــلو پوســت کــا زهـبـر مـــه شـــه
شو هلال له لاغرى انگشت نما ئي (حميد)

**لاغو** :- (لا+ غو) (اس ، مذ) کرېچې ، هرکاره ، فرائي پان.

**لاغـي** :- (لا+ غـي) (ع ، اس ، مـذ ، جـــ ان) ډوز مـار ، لاپـو ، بېهـوده گـو ، بکواسي

**لاف** :- (لا+ف) (ف ، اس ، مـذ ، جـــ ونـه) لاپـه ، ډوزه ، لوبـه خبـره ، ځـان ستائينه.

**ــــ کول** :- لوبه وهل ، ډوزه وهل.

هم هزار رنګه دروغ خلاف په زړۀ کښې
هم هزار رنګه په خولۀ د صدق لاف کا (خوشحال)

**لافو** :- (لا+ فو) (اس ، مذ ، جـــ ګان) لاپُو ، لاپې وهونکې ، ډوزمار.

**لافه** :- (لا فَ) (فپ ، اس ، مو ، جـــ فې) د "لاف" تانيث دے. لاپه ، ډوزه ، لوبه خبره.

**لافې** :- (لا + فـې) (اس ، مـو ـــ ج) د "لافـه" جمع ده. لاپې ، ډوزې ، لوئې خبرې.

**ــــ وهل** :- لاپې وهل ، ډوزې کول ، لوئې لوئې خبرې کول ، ځان ستائينې کول.

**لاک** :- (لا+ک) (هـ ، اس ، جم) يو قسم گوند ، کلک سلېښ دي چې گرمولو سره نرمېږي. د مُهرونو لګولو دپاره پکارولے شي. دا خاص قسم چينجي پيدا کوي. (هـ ـــ لاکهـ).

**لاک پښت** :- (لا+ک + پُ+ ش + ت) (ف ، اس ، مذ) شمشتې.

**لاکر** :- (لا+ک + ر) (انګ تر ، اس ، مـذ ، جـــ ونـه) اصطلاحاً پـه بېنـک کښې د وسپنې صندوق چې خلق په کښې خپل کالي او قيمتي کاغذونه وغېره کښېږدي.

**لاکړه پاکړه** :- (لا+ک + ړ + پا + ک + ړ) چيچک.

**لاکړه کاکړه** :- (لا+ک + ړ + کا+ک + ړ) (اس، مو، جـــ ې ـــ ې) د غټو تنکو (چيچک) يو سخت قسم.

**لاکړې کاکړې** :- (لا+ک + ړې + کـا + ک +ړې) (اس ، مـذ ، ج) د لاکړه کـاکړه جمع ده. تنکۍ ، غټې دانې.

**ـــــ تېرول** :- ډېرې سختۍ تېرول.

**لاکن** :- (لا+ک + ن) (ع ، حرف) د استثنا تورے ، ليکن ، مګر ،منګر ، خو ، چونکې ، چنانچې.

**لاکو لکړه** :- (لا+ کو + ل + ک + ړ) (اس ، مو) کټې ګوتې سره جُختـه ګوتـه. مسواکۍ ګوته ، د شهادت ګوته.

**لاکي** :- (لا+ کي) (صف) د لاک پـه شـان رنګ والا. سور بخن رنګ لرونکے. لاک سره تعلق لرونکے ، لاک ته منسوب. د لاک نه جوړ شوے. لاکي ها.

**لاګ** :- (لا+ ګ) (ه ، اس ، مذ) تعلق ، نسبت، تړون، معامله، مينه، محبت.

**لاګ** :- (لا+ ګ) (اس ، مذ) د تجارتي معـاملاتو يـو قسم چې بنيـاد ئـې پـه کرېډټ وي. يعني په سند ضمانت نۀ وي.

**ـــــ دار** :- (ـــــ دا +ر) (صف ، مـذ ، مـو ـــ ه) د تجـارتي لـېن دېـن سـړے. اعتباري کره سړے. خپلوان ، رشته دار. دوست ، يار اشنا.

**لاګټ** :- (لا+ ګ + ټ) (هـ ، اس ، مذ) خرڅ ، لګښت.

**لاګوس** :- (لا/ لے + ګـو+ س) (اس، مـع) د افريقـې د يـو ملـک نائيجيريـا دارالحکومت.

**لاګي** :- (لا+ ګي) (اس ، مـذ ، جـــ ان) هغـه سـړے چې تجـارتي لـېن دېـن ورسره کولے شي. اعتباري سړے. په معامله کښې کره او روغ سړے.

**لال** :- (لا+ ل) (اس ، مذ ، جـــ ونه) مشهور سور رنګے قيمتي کانړے ، لعل ، سور رنګے. دنارينه ؤ په نومونو کښې استعمالېږي.

**ـــ کتاب** :- (ـــ ک / کي + تا + ب) (ع ،تر، اس ، مذ ،جـــ ونه) د پټواريانو يـو رجسټر چې په کښې د کلي شجرو او د خسرو حال ليکلے شي.

**ــــ کرتـي** :- (ـــــ کُ + ر + تـي) (هـ ، تـر ، اس ، مـو) سـور قمـيص ، د پېرنګيـانو د وخت د ګوره ؤ يـوپلټن چې سرې ګګرې بـه ئې اغوستې. اوس په چاؤڼو کښې د هغوي د نوم بازارونه پاتې دي.

**ـــ کول** :- سور کول ، سور رنګ ورکول.

ګل ته هسې رنګ بوئي ورکړے چادے
د لالـــه دګل چـــاهسې پـاڼې لال کړې (خوشحال)

**لال** :- (لا+ ل) (اس ، مذ) د انګورانو يو ډېر اعلیٰ قسم چې سپين او ډېر خوږ وي. دا دوه قسمه وي. (۱) خرلال (۲) مېده لال.

**لال** :- (لا+ ل) (ف ، صف ، مـذ ، مـو ـــ ه) ګونګے ، چې خبرې نشـي کـولے. ترټړے، چې په خبرو کښې ئې ژبه /جبه نښلي.

**ـــ کېدل** :- ګونګے کېدل ، د خبرو کولو طاقت نۀ پاتې کېدل ،چپ کېدل ، خاموشه کېدل.

**لال** :- (لا+ ل) (اس ، مذ) معشوق ، محبوب ، معشوقه.

زمـا مينـــه هســـې نـۀ ده چـــې نـــورېږي
کــه هـــزار رنګـــه جفـا کـــړې زمـا لالـــه!

د مينې نه /څخه هر چاته وئيلے شي.

**لالا** :- (لا+ لا) (اس ,مذ) مشر ورور ته د خطاب په وخت وئيلے شي. احتراماً د ځان نه مشر سړي ته هم لالا وئيلے شي. (چې په عمر کښې ئې ډېر فرق نۀ وي) ځينې خلق پلار ته هم وائي.

**لالا** :- (لا+ لا) (اس ، مذ ، جـــ ګان) نالائق ، غبي.

که شېخي زاهدي غواړې
په خپل لاس کښې ده لالا (خوشحال)

**لالا** :- (لا+ لا) د مشهور ګل نوم ،سور رنګے چې په مېنځ کښې ئې تور داغ يا داغونه وي. غاټول، غاټوے، خاټول ، خټول.

**لالا** :- ( لا+ لا) (صـف) زلېدونکے ،زلقېدونکے ،ځلېدونکے ، پړقېدونکے ، د

„لولو ،، په صفت کښې راځي.

**لالا اوړمه ورځ** :- (لا+لا+ـــ) د اوړمې ورځې نه هم اولنۍ ورځ.

**لالبي خېل** :- (لا+ل+بي+خې+ل) (اس، مع) د ستوري خېلو څانګه ده. ستوري خېل (علي زئ، اورکزي دي. (په بله شجره کښې علي زئ او ستوري خېل يو خېل ښئيلے شوے دے. او دلالبي خېلو شجره داسې ده لالبي خېل د بره وال، علي زئ يا ستوري خېل).

**لال پري** :- (لا+ل+پ+ري) (اس، مو) د ځينو زنانه ؤ نوم. شراب.

**لالټېن** :- (لا+ل+ټې+ن) (انګ، اس، مذ، ج ـــ ونه) لالټېن، يو خاص قسم فلري ډيوه چې باتۍ ئې په شيشه کښې دننه وي د خاورو تېل په کښې بلېږي ددې مختلف شکلونه دي. (انګ لېنټېرن).

**لالج** :- لا+ل+ج) (اس، مذ، ج ـــ ونه) شور او غوغا، شور او جنجال، لالچ.

**لالچ** :- (لا+ل+چ) (هـ، اس، مذ) حرص، طمع، آز.

**ـــ کول** :- حرص کول، د حرص په طور خواهش لرل، طمع کول.

**ـــ ورکول** :- طمع ورکول، د رشوت يا د انعام وغېره د پېشکش په ذريعه د چا په زړۀ کښې حرص راولاړول.

**لالچي** :- (لا+ل+چي) (اس، مذ) متاع، مال اسباب وغېره، وستونه وستے

**لال خان زئي** :- (لا+ل+خا+ن+ز+ئ) (اس، مع) د علي زئيو څانګه ده. علي زئي (نصرت زئ، اچک زئ، ابدال) ترين دي.

**لال خېل** :- (لا+ل+خې+ل) (اس، مع) د عبدل خېلو څانګه ده. عبدل خېل (ارمز خېل، سپاه) افريدي دي. د پائنده خېلو څانګه ده. پائنده خېل (اکازي، عيسیٰ زي) يوسفزي دي.

**لالړه** :- (لا+ل+ر) (حرف) راله، راته.

**لالک** :- (لا+ل+ک) (اس، مذ) د لالابدل شکل دے. چې د زياتې مينې اظهار ترې کېږي. د مشر ورور خطاب دے.

**لالک** :- (لا+ل+ک) (اس، مذ) محبوب، معشوقه، (د لالے تصغير دے) د مينې نه هر چا ته وئيلے شي.

**لالک زئ** :- (لا+ل+ک+ز+ئ) (اس، مع) د عميرزئيو څانګه ده. عمير زئي (عبدالله زئ، سنز خېل) کاکړ دي. د شموزو څانګه ده، هارون خېل د سناتيه کاکړ دي.

**لالګے** :- (لا+ل+ګے) (اس، مذ، ج ـــ ګي) يو قسم همېل دے. چې د وړو وړو رنګينه مرو (مريو) نه جوړ شوے وي.

**لالن** :- (لا+ل+ن) (اس، مذ) محبوب، معشوقه. دوست، يار.

درخانۍ وکړه پوښتنه
له دائي دا رنګ لالنه (صدر خان)

**لالوانده** :- (لا+ل+وا+ن+د) (و ـــ لالهانده).

**لالوزي** :- (لا+لو+ز+ئ) (اس، مع) د عبدالله خېلو څانګه ده. پني دي. د کرکو څانګو ده. او د عثماني خېلو څانګه هم ده.

**لاله** :- (لا+لا) (اس، مذ) ګل لالا، (و ـــ لالا).

**ـــ رخ** :- (ـــ رُ+خ) (ف تر، اس، مو، ج ـــ خې) د ګل لالا په شان مخ لرونکے، ښکلے ښائسته. د زنانه ؤ نوم.

**ـــ زار** :- (ـــ زا+ر) (ف تر، اس، مذ، ج ـــ ونه) هغه ځاے چرته چې د لالا ګلونه (کرلي) شوي وي. د لالاد ګلونو باغيچه.

**ـــ سرے** :- (ـــ س+رے) (پ تر، اس، مذ، ج ـــ ري) د يوې مرغۍ نوم دے. چې سر ئې سُور وي. د يوې ښکاري مرغۍ نوم دے، ترمتے، تلمتے.

**ـــ فام** :- (ـــ فا+م) (پ تر، صف، مذ، مو ـــ ه) د ګُل لالا په شان رنګ (سور) لرونکے، سور رنګے، ښکلے، ښائسته.

**لاله ـــ** :- (لا+ل ـــ) (سابقه) د فارسۍ سابقه ده. د اسمونو نه/ څخه وړاندې لګولے شي. لکه: لاله فام. د لالا د ګل په شان د سوررنګ معنیٰ ورکوي.

**لاله** :- (لا+لا) (اس، مذ، ج ـــ ګان) دهندوانو دعزت يو خطاب، شوکار، سېټ، بنيا.

**لالهاند** :- (لا+ل+ها+ن+د) (صف، مذ، مو ـــ ه) سرګردانه، پرېشانه.

**ـــ تيا** :- (ـــ ت+يا) (پ تر، اس، مو) پرېشاني، ترهورتيا.

**لالهانده** :- (لا+ل+ها+ن+دَ) د „لالهاند،، تانيث دے.

**ـــ کول** :- سرګردانه کول، پرېشانه کول. اوتر کول.

**ـــ کېدل** :- پرېشانه کېدل، سرګردانه کېدل، اوتر او حېران کېدل.

**لالهان** :- (لا+ل+ها+ن) (و ـــ لالهانده).

**لالي** :- (لا+لي) (ع، اس، ج) د لؤ لؤ جمع ده. مراد ترې د مرغلرو لړۍ ده.

**لالے** :- (لا+لے) (صف، اس، ج) د لاله (مؤنث) جمع ده. معشوقه، محبوب، د ماشومانو دپاره د مينې لقب.

ګلعـــزار ئې لالـــه ګل دے
غابښ ئې دُر، شونډې ئې لالې (خوشحال)

**لام** :- (لا+م) (اس، مذ، ج ـــ ونه) د „ل،، د توري نوم. او ـــ „ل،، د الفاظو په اول سر کښې د „لام،، دتوري شکل راکوزتيې شان دے. ځکه شاعرانو د قد د کوږوالي د تشبيه دپاره ډېر استعمال کړے دے.

**لام** :- (لا+م) (ف، اس، مذ، ج ـــ ونه) د فوځ (عسکر) يوه لويه دسته چې د يو افسر دلاندې وي. عموماً دجنګ په وخت د لښکرو جمع کولو ته وائي.

**ـــ بندي** :- (ـــ ب+ن+دي) (ف تر، اس، مو) دجنګ په موقع د مختلفو قسمونو لښکرو راجمع کونه.

**ـــ بندي کول** :- د جنګ په موقع مختلف قسم لښکرې (پياده سوارۀ، توپ خانه وغېره) راجمع کول.

**ـــ تړل** :- د جنګ په وخت، د لښکرو راجمع کول، لام بندي کول.

**په ـــ تلل** :- د جنګ مېدان ته تلل. پلټنې ټولې په لام لاړې په کابل جنګ دے.

**لاما** :- (لا+ما) (اس، مذ، ج ـــ ګان) تبت ملک د بُدهـ خلقو د مذهبي پېشوا لقب.

**لامبات** :- (لا+م+با+ت) (اس، مذ، جم) نبات، مصري، قند.

**لامباتي** :- (لا+م+با+تي) (صف) لامبات سره تعلق لرونکے، دنباتو، د مهري

**لامبل** :- (لا+م+ب+ل) (مص) غسل کول، په ټول بدن اوبۀ تېرول لاتبل.

**لامبنه** :- (لا+م+ب+نَ) (حمص) غُسل، په بدن اوبۀ تېرونه، لمبا.

**لامبو** :- (لا+م+بو) (اس، مو، ج ـــ ګانې/وې) شناوري شنا، په اوبو کښې، لاس د ښپو (پښو) خوزولو سره تګ.

**ـــ زن** :- (ـــ ز+ن) (پ تر، صف، مذ، مو ـــ ه) لامبو وهونکے، شناور، شنا کوونکے. (اُر: تېراک) سخت او ګران کار کولو کښې پاتې نۀ راتلونکے، د سختو او ګرانو کارونو مړنے.

**ـــ وهل** :- په اوبو کښې په خاص طريقه لاس او ښپې/خپې خوزولو سره (لکه د کب) ګرځېدل، شنا کول.

**لامبوزے** :- (لا+م+بو+زے) شناوري.

**لامحاله** :- (لا+م+حا+ل) (ع تر، تف) ضرور، خوامخواه، هرومرو، يقيناً.

**لامدۀ** :- (لا+م+د) (صف، ج) لاوندۀ، لُوند شوے.

لامدۀ مې دربخښلي خوځې وچ مې لامدۀ کړې (متل).

**لامذهب** :- (لا+ م + ذ + هـ + ب) (ع ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې مذهب نه لري - بې مذهبه، بې دينه، دهريه - (په پښتو کښې ,,لامذهبه،، استعمالېږي په دې کښې ,,ه،، د تانيث نخښه نه ده) -

**لامذهبه** :- (لا+ م+ ذ + هـ + ب) بې دينه - دهريه -

**لامذهبي** :- (لا+ م + ذ +هـ + بي) (و ـــ لامذهبيت) -

**لامذهبيت** :- (لا+ م + ذ + هـ +بي + ي + ت) (ع ، تر ، اس ،مذ) مذهب نه لرنه ، بې ديني ، دهريه توب -

**لامس** :- (لا+ م + س) (ع ، اس ، فا ، ج ـــ ان) لمس کوونکے ، ګوتې ور وړونکے ، مس کوونکے -

**لامسه** :- (لا+ م/م + سَ) (ع ، اس مو) د بنيادم په پينځو قوتونو کښې يو قوت - چې د کوم څيز ادراک په ګوتو وَرْوړلو (لمس) يا مس کولو سره کوي - يعني په دې د هغه څيز مهين والے ، ستغ والے ، تود والے او سوړ والے وغيره معلومولے شي -

**لامع** :- (لا+ م + ع) (ع،اس ، فا) زلېدونکے ،زلقېدونکے ، ځلېدونکے -

**لامکان** :- (لا+م+ کا + ن) (ع ، صف) چې مکان يا ځاے نه لري - بې مکانه ، چې په کوم خاص ځاے کښې مقيد نه وي - دخداے پاک په صفت کښې وئيلے شي -

**لام کلام** :- (لا+م + ک + لا+ م) (عپ ،تر، اس ، مذ) ګُفت ، خبره، وايۀ -

**ـــ نۀ کول** :- ببخي خبره نۀ کول ، د خولې نه ګُفت نۀايستل ، چپ پاتې کېدل

**لامل** :- (لا+م + ل) (ع ،اس) سبب ،وجه ، باعث ، په پښتو کښې عموماً ,لامله ، استعمالېږي -

**لامله** :-(لا+ م + لَ) د ,,لامل،، بدل شکل دے چې په پښتو کښې د ,,لامل،، په ځاے استعمالېږي -

لکه: له دې لامله دغه کار کېدونکے نۀ دے -

**لان** :- (لا+ ن) (انګ،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) لوے هوار مېدان چې په کښې کبل يا نور واښۀ کرلے شوي وي - چمن ، مصنوعي سبزه زار -

**لان** :- (لا+ن) (ف ، اس ،مو) بې وفائي (ظفر)

**لانبو**:- (لا+ ن+ بو) (و ـــ لامبو) -

**ـــ وهل** :- (و ـــ لامبووهل) -

**لانجه** :- (لا+ن + جَ) (اس ، مو ، ج ـــ جې) شخړه ، جنجال ، تنازعه ، پېچيده خبره يا معامله -

**ـــ جوړول** :- خبره پېچيده کول ، جګړه پيدا کول -

**ـــ غوڅول** :- جګړه ختمول،شخړه ختمول،معامله رفع دفع کول -

**ـــ کول** :- جګړه کول ،ضد کول،ځېل کول ، ازار رسول ، (ا - ق) -

**ـــ مار** :- (ـــ ما + ر) جګړمار ، بدمعامله سړے - چې سمه خبره ورانه کړي - يا په خپله غلطه خبره ونښلي - جنجالي ، د جګړو نه ډک يا پيچېده کارونه کوونکے

**ـــ ماري** :- (ـــ ما+ ري) (پ ، تر ، اس،مو) بد معاملګي ، په لبنۍ دبنۍ يامعامله کښې کوتړه توب -

**لانچ** :- (لا+ن + چ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) لويه کشتۍ چې د کوئلې وغيره په زور په لويو سيندونو يا سمندر کښې چلولے شي -

**لاندې** :- (لا+ن +دې) د ,,لاندې،، جمع - د ,,لاندې،، مجروري وغيره شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي -

**د ـــ غوښه** :- (د ـــ غ + و + خ / شَ) وچه کړې غوښه -

**لاندې باندې** :- (لا+ ن + دې + با+ن+ دې) (اس ، مو) د هلکانو د يوې لوبې نوم -

**ـــ کول** :- د لاندې باندې لوبه کول -

**لاندې** :- (لا+ن + دِ) (حرف) ښکته ، کوز ، زېر،ماتحت،د کمې يا کوزې درجې -

**ـــ باندې اوړېدل** :- اوړېدل را اوړېدل ، کله يو (حصه) د باندې کله بله - بدلېدل رابدلېدل -

**ـــ باندې کېدل** :- چاته ښکته پورته کتل ، د سر نه تر پښو (ښپو) پورې په غور سره کتل ، د کوم څيز ښه جائزه اخېستل -

**ـــ باندې کول** :- ښکته پورته کول ، د ښکته څيز بره او بره څيز ښکته کول - ګډوډ کول -

**ـــ باندې کښېښول / قط کول** :- کاغذونه يا داسې قسم بل څيز د يو بل دپاسه په پره کښېښودل يا قط کول، تهـ په تهـ کښېښودل -

**ـــ باندې لګېدل** :- په خپله کښې مقابله يا پرزول کول - کله يو دپاسه او بل دلاندې ،کله بالعکس - عموماً قطع تعلق ښودلو په موقع وئيلے شي - لکه: تاسو لاندې لګئ باندې لګئ زما په کښې هېڅ کار نشته -

**ـــ خلق** :- (ـــ خ + ل + ق) (پ تر ، اس ، ج) د ښکته يا دلاندې درجې خلق ، عاجز غريب او عام خلق -

**ـــ ساتل** :- کمزوري ساتل ، په داسې حالت کښې ساتل چې ترقي ونۀ کړي او د برابرۍ جوګه نشي -

**ـــ ستون** :- (ـــ س + تو + ن) (پ، تر ، اس، مذ) تولاټي ، توشک يا بل کوم داسې نرم څيز چې په کټ اچولے شي - په کوم چې بنيادم څملي -

**ـــ کول** :- په منډه يا د ګاډو وغيره زغل کښې وړاندينې ته ور رسېدل - د بل سړي مال ، پټے وغيره په خپله قبضه کښې راوستل ، ناجائز قبضه کول - د بل څيز نه ښکته کښېښودل -

**ـــ کېدل** :- کمزورے کېدل ، مغلوبه کېدل ، ماتې خوړل -

**ـــ ملک** :- (ـــ م+ ل + ک) (پ ع ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ښکته ملک ، د پنجاب نه نمر خاتۀ طرف ته ملک -

**ـــ منزل ،پوړ**:- د بل منزل يا پوړ وغيره نه ښکتنے منزل يا پوړ -

**ور ـــ وتل** :- دبل کوم څيز نه لاندې ورننه وتل - مجازاً کوم کار وغيره ته اړ مېدل -

**لاندے** :- (لا+ن +دے) (اس ، مذ) وچه کړې غوښه ، دګډ ګډوري غوښه يا ثابت ګډ ګډورے چې په خاص طريقه اوچ او محفوظ کړے شي - او بيا ئې په ژمي کښې استعمالوي - د لاندې ښوروا ، د لاندې انګولے -

**ـــ باندے** :- (ـــ با + ن+ دے) (پ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ي) په حساب کښې کمے زياتے ، مجازاً جګړه ، تنازعه -

**ـــ راتلل** :- په دوه کسانو يا ډلو کښې په څۀ خبره جګړه پيدا کېدل ، تنازعه جوړېدل، ورانے راتلل -

**لاندېدۀ** :- (لا+ن + دې + دۀ) (و ـــ لوندېدۀ) -

**لانديسے** :- (لا + ن + دې + سے) (صف ، مذ ، ج ـــ سي) لاندينے (څيز) هغه څيزچې د بل کوم څيزنه ښکته وي -

**لاندينۍ** :- (لا+ن + دي + ن + ی) د ,,لاندينے،، تانيث دے -

**لاندينے** :- (لا+ ن + دي + نے) (اس ، صف ، مذ ، ج ـــ ني) ښکتنے ، کوزنے ، هغه څيز وغيره چې د بل کوم څيز نه ښکته يا کوز وي - زيرين ، پائين -

**ـــ مخ** :- (ـــ م + خ) هغه سطح چې لاندې يا ښکته طرف ته وي - (د ,,برنے مخ،، په مقابله کښې) لکه: د برستنې لاندينے مخ زر خيرنېږي -

**لانړي** :- (لا+ن + ړ + ري) (انګ ، اس ،مو) دجامو د وينځلو ځاے - هغه ځاے چرته چې جامې په مسالو وينځلې شي - مشيني دوبي خانه -

**لانړو** :- (لا+ن +ړو) (اس ، مذ) ډېر کم او لنډ وخت -

**لانړپس** :- (لا+ن + ړ + س) (اس ، مذ) املتاس ، ګړدنلې -

**لانگري** :- (لا+ن+گ+ري)(اس ، مذ ، ج ـــــ ان) هغه سړے چې په لنګر کښې د پخولو کار کوي.لنګري ، باورچي ، اشپز.

**لانګه** :- (لا+ن+ګَ)(اس، مو ، ج ـــــ ګې) د بوڼ نه لږ غټ هغه پړے چې د کټ د بوڼلو نه پس يو طرفته پرېښودے شوے خالي ځاے پرې بازو سره کلکولے شي.لنګه ، پيارمه.

**لانګه** :- (لا+ن+ګَ)(اس ، مو ، ج ـــــ ګې) د يوې ونې لرګے چې ډېر سخت وي

**لانه** :- (لا+ڼ+ه)(اس ، مو ، ج ـــــ ې) يو قسم بوټے دے .چې د جامو د وينځلو دپاره پکارولے شي.داوښانو خوراک هم دے. (اُر : اونټ کټارا ).

**لاڼے** :- (لا+ڼ+ے)(اس ، مذ ، ج ـــ ي) لاړے ، لهړے ، برګه ، چې د چت د جوړولو دپاره پکارولے شي.

**لاوارث** :- (لا+وا+ر+ث)(ع تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغه سړے چې د خپل مال دولت وارث نۀ لري.هغه مال وغېره چې مالک ئې هېڅوک نۀ وي.بې خاونده مال ، دولت وغېره.

**لاورے** :- (لا+و+رے)(اس ، مذ ) مشهوره ګيا چې زېړ ګلونه کوي .د ښارو خوراک دے.دسپرلي په شورو کښې کېږي.

**لاوړمه شپه** :- (لا+ؤ+ړ+م+ش+پ).

**لاوړمه شپه** :- (لا+او+ړ ـــــ)(پ تر و اس ، ظ) د بېګانه بلې شپې ، نه/ځخه هم تېره شپه.دريمه تېره شوې شپه.

**لاوږېز** :- (لا+و+ږي+ز)(اس ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) يو قسم ګندنه ، د بخې يو قسم دنقش يو قسم.

**لاون** :- (لا+و+ن)(اس ، مذ ) اينګولے ، لونده بل ، پخه ترکاري وغېره چې ډوډۍ ورسره پورې کولے شي.سالن ، لاوڼ.

**لاونده** :- (لا+ؤ+ن+د)(صف ، ج) د ,,لوند،،جمع ده.

**ـــ خوشته** :- (ـــــ خُ+ش+ت).

**ـــ خيشته** :- (ـــــ خي+ش+ت)(پ تر ، صف ، ج) د لوند جمع ده .دواړه هم معنٰی دي.دويم لفظ د تاکيد دپاره راځي.يعني ډېر زيات لاونده او خوشت.په اوبو جب جوب په اوبو تر به تر.

**لاوڼ** :- (لا+ؤ+ڼ)(اس مذ ) شوملې پخې کړې او مصالحه غوړې په کښې واچوي نو يو قسم اينګولے ترې جوړ شي .ډوډۍ ورسره خوري، کړي ، پخې شوملې.

**لاوه** :- (لا+و)(اس، مو ، ج ـــــ وې) هغه ويلې شوې ماده چې د مائع اور په شکل کښې د اتش فشانه غر د خولې نه رابهېږي.

**لاهم** :- (لا+هُ+م)(حرف) نورهم ،بياهم ،علاوه ددې نه/ځخه.

د معشوقو په زلفينو کښې ځاے وکا

ښـــائسته ګلونه پاس په وربل لاهم (خوشحال)

**لاهو** :- (لا+هو)(صف ، مذ ، مو) په اوبو کښې ډوب روان .بهاندو اوبو کښې ډوب يا سرسري روان.

**ـــــ کول** :- په بهاندو اوبو کښې ورګډول چې سيند ئې يوسي . ډوبول ،غرقول.

ستـــا له ډېره ډېره جوره معلومېږي

چې به ماپه خپلووينو کښې لاهو کړي (رحمان بابا )

شاملول ، ورګډول.

**ـــ کېدل** :- په بهاندو اوبو کښې داوبو سره (د اوبو په زور) تلل . مجازاً ضائع کېدل ، ډوبېدل ، تاواني کېدل.

**لاهوت** :- (لا+هو+ت)(اس ،مذ ) دخداے تعالٰی د ذات عالَم ، (په تصوف کښې سالک له په دې مقام يا عالَم کښې دخداے په ذات کښې د فنا کېدلو موقع حاصلېږي ).

**لاهوتي** :- (لا+هو+تي)(صف) عالم لاهوت سره تعلق لرونکے .

**لاهور** :- (لا+هو+ر)(اس ، مع ) د پاکستان مشهور ښهر.

هغه دست د محبت په صحرا مند شي

چې منده نشي په ښهر د لاهور کښې (حميد)

**لاهوره** :-(لا+هو+ر)(ف ، اس ، مو ، ج ـــــ رې) دخربوزې وغېره ترازه ، قاش.

**لائے** :- (لا+ئے)(ف،اس، مذ )تَه ، ول ، پرک.

**لائے** :- (لا+ئے)(ف ، اس ، ج ) ختې ،لهې ،نرمې ختې ،چکلې چقړې.

**لائبرېري** :- (لا+ئے+ب+رې+ري)(انګ ، اس ، مو ) کتب خانه ، د مطالعې ځاے.

**لائبرېرين** :- (لا+ئے+ب+رې+ري+ي+ن)(انګ ، اس ، مذ ،ج ــ ان ، مو ــ ه) د کتب خانې مهتمم ، د کتب خانې ناظم.

**لائټ** :- (لا+ئي+ټ)(انګ ،اس ، مذ ، ج ــ ونه) رڼا ،روشنائي.

**لائټ وېټ** :- (لا+ئي+ټ+وې+ټ)(انګ ، صف) سپک ،کم وزن واله ، په سُوک بازۍ (باکسنګ) يا په کشتۍ کښې د سپک وزن واله لوبغاړے چې ۱۲۷ نه تر ۱۳۵ پونډه وزن پورې وي.

**لائح** :- (لا+ئ+حْ)(ع ، صف) ښکاره ، روڼ، ظاهر.

**لائحــه** :- (لا+ئــې+حــه)(ع ، اس ، مــو ، ج ـــــ حــې) زلقبـدونکے ځيـز ، زلېدونکے ، ځلېدونکے ،واضح ښکاره . ثبوت ، پروګرام ، نظام عمل. لکه : لائحۀ عمل.

**ـــ دعمل** :- هغه پروګرام ياطريقه د کار چې عمل پرې اوکړے شي.

**لائسنس** :-(لا+ئي+س+ن+س)(انګ ، اس ،مذ ،ج ــ ونه) اجازت نامه ، لېسن.

**لائف** :- (لا+ئي+ف)(انګ ، اس ، مؤنث) ژوند ،زندګي.

**ـــ بائے** :- (ـــ با+ئے).

**ـــ بوائے** :- (ـــ ب+وا+ئے)(انګ ، تر ، اس ، مذ ) د ربړ د بادونه ډک ټيوپ چې د جهاز د خطرې په وخت ئې خلق خپلې ملا ته واچوي او سمندر ته ودانګي.د ژوند/ جوند د بچاؤ ټيوپ.

**ـــ بوټ**:- (ـــ بو+ټ)(انګ،تر ،اس،مذ ) هغه وړه شان کشتۍ چې په لوے جهاز کښې موجودې وي .د جهاز د خطرې په وخت په دې کښې خلق سمندر ته ورکوز شي او امدادي جهاز ئې بچ کړي .د ځان بچاؤ کشتۍ.دنجات بېړۍ.

**لائق** :- (لا+ئې+ق)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) لياقت لرونکے،قابل ،اهل ، متناسب ،موزون ،دانا ،هوښيار .

**ـــ فائق** :- (ـــ فا+ئې+ق)(ع ، تر ، صف ،مو ،ه ـــــ ه) ډېر زيات لائق، لياقت او فوقيت لرونکے.

**لائقانه** :- (لا+ئے+قا+ن)(تف) د لائق سړي په شان ،د لائق هسې.

**لائـم** :- (لا+ئــے+م)(ع ،اس،فـا ،ج ـــــ ان) ملامتــه کــوونکے ، تهمت لګوونکے، سرزنش کوونکے.

**لائـن** :-(لا+ئ+ن)(انګ ، اس ، مـذ ،ج ـــ ونـه)خـط ،کرښـه ، مـزے ، د ټيليفون يا د تار وغېره تار، سلسله. قطار ،(لېڼ) د پوليس لوے مرکز . د رېل ګاډي اوسپنيزه پاټلۍ.

**ـــ جوړول** :- په قطار کښې اودرېدل.

**ـــ کټ کېدل** :- د ټيليفون تار يا د تړون شلېدل.

**ـــ مېن**: (ـــ مې+ن)(انګ ،تر، اس، مذ، ج ــ ان) د بجلۍ دمحکمې يو خاص غړے چې د بجلۍ د تارونو نګراني او سمونه کوي.لېڼ مېن ،لېڼ ماستونے.

**لائیو سټاک** :- (لا+ ئي + و+ س + ټا +ک )انګ ، تر ، مذ ) څاروي ، حیوانات.

**لایزال** :- (لا+ ئ+زا+ل )ع ، تر ،صف ،مذ ، مو ــــه ) هغه چې زوال نهٔ لري. تل پاتې کېدونکے چې دوام لري.دوامي.

**لایزاله** :- (لا+ ي + زا + ل )ع ، تر ، صف ) هغه چې زائل کېدنه ئې نهٔ وي . دائمي ،همېش له پاتې کېدونے.

د شرابو مستي زر شي نېست وهسته
لایزاله مستي نهٔ درومي لــــه مسته (خوشحال)

**لایعقل** :- (لا+ ئ+ع + ق + ل )ع ،تر ، صف ،مذ ،مو ـــه ) هغه چې عقل نهٔ لري.بې عقله ،دعقل نه پاک.

ددې میوپیالې ډېرو دې اخستې
ولې ما غوندې به نهٔ وي لایعقله (خوشحال)

**لایعني** :- (لا+ ي + ع+ ني )ع ،تر ، صف ) هغه چې هېڅ معنې نهٔ لري .بې معنې، فضول ، بې مطلبه.

**لایموت** :- (لا+ ئ+ مو + ت )ع ، تر ،صف ،مذ ،موـــه ) هغه چې مرګ ئې نهٔ وي.تل ژوندے (جوندے) پاتې کېدونکے.لایزال.

چې ئې نوم په جهان پاتې شي د نېکو
هغه زوے دے په جهان کښې لایموت (خوشحال)

**قوتـــــ** :- (قو + تـــــ )ع ، تر ، اس ) دومره خوراک (قوت) چې سړے پرې هیله ژوندے (جوندے) پاتې کېدے شي .د ژوند د ضرورت مطابق خوراک.

**لاینبغي** :- (لا+ي +م+ ب + غي )ع ، جمله ) داسې کار نهٔ دي .مناسب نهٔ دي .نامناسبه ،غېر موزون ،ناموزونه.

**لاینحل** :- (لا+ ي + ن + ح + ل )ع ، تر ، صف ) هغه چې حل کېدے نشي یا چې حل نهٔ لري.ډېره زیاته پېچیده مسئله یامعامله.

**لاینفک** :-(لا+ ي +ن+ ف + ک )ع ،تر ،صف ) هغه چې جدا کېدے نشي . بېلولے نشي.

**جزوــــ** :- (جُ + زْ + وــــ )ع ، تر ،اس ) هغه جُزو یا برخه چې د خپل کُل نه نهٔ شي بېلېدے.ضروري او لازمي جزو یا برخه.

**لاینقطع** :- (لا + ي+ن+ق + ط + ع )ع ،تر ،صف ) هغه چې قطع کېدے یا پرېکېدے نشي.مسلسل ،پرله پسې ،متواتر، پېهم.

**لب** :- (ل + ب )ف ، اس ، مذ ، ج ـــان ) شونډه.غاړه ،جې ،ژې ،څنډه.

**لب** :- (لَ + بْ )حرف) ټول ، همګي ، واړه. لکه : د لبه تلل ،د لب راتلل ، دربغ ، افسوس. لکه : لب نهٔ پرې کول ، افسوس پرې نهٔ کول.

**ـــــ بندي** :- (ـــــ ب+ن+ دي )ف تر ،اس ، مو ) شونډې بندونه .په وېنا یاخبرو پابندي.

**ـــــ بیارته کول** :- خولهٔ سپړدل ،خبرې کول.

**ـــــ ریز** :- (ـــــ رې + ز )ف ، تر ، صف ، مذ ،موــــه ) ترجیو (ژیو) پورې ډک ، تر څنډو ډک.

**ـــــ شکر** :- (ـــــ ش + ک + ر )ف تر ، صف ، مذ ، موــــه ) د شکروپه شان خوږو شونډو واله.د معشوق د شونډو صفت.

دلنوازه سرفرازه عشوه سازه لعبت بازه
خودپسنده سربلنده شکرخنده لب شکره (خوشحال)

**ـــــ شیرین** :- (ـــــ (بې) + شي + ري +ن )ف، تر ،اس ) خوږه شونډه ، خوږې شونډې.

**ـــــ ګور** :- (ـــــ (بې) + ګو + ر )ف تر ، صف ) د ګورپه جیو (ژیو) ، د قبر په غاړه د ګور په سرولاړ ، مجازاً مرګ ته نزدې ، قریب الموت.

**ـــــ ولهجه** :- (ـــــ (بو) لې + هـ + جَ )ف ، تر ،اس ، مو ) د خبرو انداز ، د ګفتګو طرز او تلفظ.

**لب** :- (لُ + بْ )ع ، اس ، مذ ، ج ـــ لُبوب ) رس ، جوهر ، نچوړ ، مغز. عقل ، پوهه ،خرد.

**ـــــ لباب** :- (ـــــ لُ +با + ب )ع ، تر ،اس ) د خلاصې خلاصه ، دعطر عطر ، ډېر خالص.

**لباده** :- (ل + با+دَ )ف ، اس ، مو ، ج ـــــ دې ) چُغه ،چوغه ،د مالوچو چوغه. جغ ،ژغ.

**لباس** :- (ل + بــا + س )ف ، اس، مــذ ،ج ــــــ ونــه ) پوشــاک ، جــامې ، اغوستنه.ظاهري بنودنه ، نمائش ، ریاکاري ، درغلتوب.

**لباسي** :- (ل + با + سي )صف ، مذ ، ج ـــ ان ) ظاهري نمائش کوونکے ، ریاکار ، دوکه مار ،درغلې.

**لباف** :- (ل + با+ ف )ف ، اس ، مذ ) رسۍ ، پړے ، بوږ خرڅوونکے.

**لب جب** :- (ل +ب+ج + ب )اس ، مذ ) د چل ول خبرې ،دوکه داکه ، تشې د خولې ډوزې. انه بانه ،انې بانې ،حیله.

**ـــــ کول** :- حیلې کول ،انې بانې کول، صفاخبره نهٔ کول ، دېخوا اخوا ویشتل ، تشې دخولې خبرې کول. دچل ول خبرې کول.

**په ـــــ کار اېستل** :- دخولې په خبرو یا د چل ول په خبرو مطلب پوره کول.

**لبړ** :- (ل + ب+ړ + ر )صف ، مذ ،موـــــه ) غټ او بې سُره ، غټ څورب سړے چې بې ډوله او بد شکله هم وي.

**لبرالزم** :- (ل + ب + را + ل + ز + م )انګ ، اس ،مذ ) ازاد خیالي ،هغه نظریه چې په کښې د جمهوري او معاشرتي اصلاحاتو مرسته کولے شي.

**لبرل** :- (ل+ ر + ب + ر + ل )انګ ، صف ) ازادخیال ،اصلاح پسند ،د قومي مفاد خیال لرونکے ، ازاد ،خپلواک.

**لبرلـزم** :- (ل + ب + ر + ل + ز + م )انـګ ، تـر ،اس ، مـذ ) ازادي پسـندي ، د خپلواکۍ یا د ازادۍ عقیده.

**لبرلسټ** :- (ل +ب + ر+ل +س +ټ )انګ ،تر ،اس ،مذ ،ج ـان ) ازادي پسند ، د ازادۍ یا د خپلواکۍ عقیده لرونکے.

**لبرېشــن** :- (ل + ب + رې + ش + ن )انـګ ، اس ، مـذ ) ازادي ،اسـتقلال ، خپلواکي .لکه : لبرېشن فرنټ.

**لبرو** :-(ل+ بَ / بَ + رو )صف ، مو ) بې هوده ، بکواسې دروغجنه ښځه.

**لبـړه** :-(لَ+ بْ + رَ )اس ، مـو ، ج ــــــ ړې ) ګرانه مسـئله ،شـخړه ،تنازعـه ، حادثه.اوس څهٔ لبړه درپېښه ده.

**لبش** :- (لَ + بْ + ش )اس، مذ ، ج ـــــ ونه ) شهتیر (دکوټې).

**لبلاب** :- (ل + ب + لا+ ب )ع ،اس ) پیروته ،عشق پېچه ،مشهوربوټے.

**لبلب** :- (لَ+ ب + لَ+ بْ )اس ، مـذ ـــــــ ونـه ) د څـاروي پـه د ننـي اعضاؤ کښې یو عضو ، چې غوښه ئې دېره خوږه وي.

**لبلبکے** :- (لَ+ ب + لَ+ ب + کے )اس ، مذ ) یو قسم بوټے دے.غونډې پاڼې لري د څاروؤ خوراک دے.

**لبلبو** :- (ل + ب + لَ+ بُو )اس ، صف ، مذ ) خوږه تره،جغندر ، چقندر چې د یشولو نه پس خوړے شي. خوشے بې کاره سړے.بې خونده سړے.

**لبن** :- (لَ+ بَ + نْ )ع، اس ، جم ) پۍ ،شودهٔ.

**لبنان** :-(لُ+ بْ + نا + ن )اس ، مع ) د اېشیا لوئیدیز طرف ته مشهور ملک.

**لبنیات** :- (لَ+ بَ+ نْ+ یا + ت )اس ، جم ) د پیـو (شـودو) پـه حقله علـم ، د پیو نه جوړېدونکې څیزونو علم ، (لبن = پۍ).

**لبوب** :- (لُ +بُو + ب )ع ، اس ، ج ) د ,,لُب ،، جمع ده. مغزیات.یو قسم معجون چې د مختلفو مغزیاتو او د نورو داروګانو نه جوړولے شي.

**لبوزے** :- (ل + بو + زے )اس، مذ ،ج ـــــ زي ) د غرهٔ پوزه ، په غر کښې د

پوزې په شان وتې ځاے ، د غړۀ څوکه.

**لبي** :- (لَ + بي)(ف ، صف) شونډو سره تعلق لرونکے ،شونډيز .لکه : لبي حروف

**لبے** :- (ل + بے)(اس ، مذ ، ج ـــ بي) د چرچڼو وغېره د نيولو دام.

**لبے** :- (لَ + بے)(اس،مو ، ج) د ,,لبه،، جمع ده . د ,,لبه،، مجروري وغېره شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**لبيب** :-(ل + بي + ب)(ع ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) هوښيار ،پوهه ،عقلمند ، دانا .

د هلک مينه په چا وي په هلکو

د لبيب قـدر په چاوي په لبيب (خوشحال)

**لبيک** :-(ل + ب + ي + ک)(ع ، جمله) زۀ حاضر يم ، يوه جمله چې د حج په موقع بيا بيا وئيلے شي. د چا د اواز کولو په موقع جواباً ,,لبيک،، وايۀ شي.چې زۀ حاضر يم زۀ موجود يم.

**ـــ وئيل** :- د حج په موقع د ,,لبيک،، کلمه بيابيا وئيل . د چا په غږ جواباً ,,لبيک،، وئيـل دچا پـه غـږ يـاحکم د عمـل کولـو دپـاره رضامندي ښکاره کول

**لپ** :- (ل + پ)(اس ،مذ ، ج ـــ ونه) لپه ،دواړه پرانستي لاسونه چې يو ځاے کړے شي.دومره مقدار چې په لپ يا لپه کښې راتلے شي.

لکه : يو لپ اوړۀ مې ورله ورکړۀ.

**لپاره** :- (ل +پا + ر+ه)(حرف) دپاره ،د خداے لپاره ،د خداے دپاره.

**لپانړے** :- (ل +پا +ن + ړے)(اس،مذ ،ج ـــ ړي) غونډ کړے وړوکے کانړے يا تيکري چې هلکان ورسره لوبې کوي.گونډۍ، کچې ،موچې.

**لپانړکي** :- (ل + پا + ن + ړ + کي)(اس ، مذ ، ج ـــ کي) سولۍ،هغه غونډ کړے تيکرے کانړے چې واړۀ ورسره لوبې کوي.گوټيه ،گونډۍ ،موچې.

**لپ ځټ** :- (ل + پ + (ت) س + ټ)(ص ،مذ ،مو ـــ ه) حاصل ورکوونکے ، زرخېز

**لپړ** :- (ل + پ + ړ)(اس ، مذ) مرزه ، رعشه، چې ځينې وخت د لړ ساعت دپاره په بدن کښې پېدا شي .لکه : دلوړې لپړ وهل ! د ډېرې لوږې نه ربړېدل.

**لپړ** :- (ل + پ + ړ)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) بربنډ ،عموماً د ,,لڅ،، لفظ سره يو ځاے راځي او د لڅ په معنیٰ کښې زور او تاکيد پېدا کوي. يعني لڅ لپړ دے = بېخي بربنډ دے.

**لپـړ** :-(ل + پ + ړ)(صـف ، مـذ ،مو ـــ ه) خوشکے ،خوشـکمار ، اواره گـرد ، هېڅکاره.

**لپړک** :- (ل + پ + ړ+ ک)(و ـــ لپړ).

**لپړل** :- (ل + پ + ړ + ل)(مص) په ځينو لوبو کښې دوه مشران چې ,,ميران،، بللے شي .په نورو هلکانو کښې چې ځان ځان له ډلې جوړوي نو دوه دوه هلکان يو ځاے شي يو په کښې ځان لـه ,,توره،، نوم خوښ کړي او بـل ټوپک .بيا دغـه جوړې وار په وار يو يو مير لـه راځي.دوه گوټې په لاس کښـې ونيسـي او ورتـه وائـي چې ,,خانـه خانـه لپـړي !،، (يـا خانـه خانـه ايرےايرے ؟) مير ورتـه وائي دوه دې غړي .بيا ورتـه دجوړۍ هلک وائـي ,,توره غواړې که ټوپک،، مير په جواب کښې يا ټوپک ووائي يا تـوره. چې کوم نوم ئې واخست ددغې نوم هلک د هغـه ملگرے شي .دغـه شـان ټول لوبغاړي د دوه ؤ ميرانو د لاتـدې دوه ټولي شي . دې ټول عمـل تـه ,, لپړل،، وائي.

**لپړنه** :- (ل + پ+ ړ + نَ)(حمص) ځان له ملگري غوره کونه.(و- لپړل).

**لپـړو** :- (ل + پ +ړو)(اس، مـذ ) لاپو،ډوزمـار ،خبرلوڅے، کرتو، ډېرې خبـرې کوونکے.خوشاټارے ،خوشے گرځېدونکے ، اواره گرد ،لپړي غړوونکے.

**لپـړي** :- (ل + پ+ ړي)(اس ،مـو) اوار گـردي ،خوشـکتوب .بـې کـاري بـې ملگرتوب .(غالباً دا لفظ ,,لپړل،، سره تعلق لري .دکوم هلک چې جوړۍ نـه وي هغـه يـوائې پـاتې شي او پـه لوبـه کښـې نشـي شاملېدے . گواکه خوشے او بې کاره شي).

**لپړي** :- (ل +پ + ړي)(ه ،اس ،مو) شلېدلې کپـړه (کپـړا) ،(هندي ده .ظفر راوړے دے).

**لپړي** :- (ل + پ + ړي) د ,,لپړه،، جمع ده.د ,,لپړه،، بدل شکل دے.چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

په سبا ښکا ئې ذکر نور ځۀ نۀ وي

تـل ئې ذکـر د ذکـر وي د لپړې (خوشحال)

**لپـړے** :- (ل + پ + ړے)(اس،مـذ ، ج ـــ ړي) د دارو ليتهي چې پـه کپـړه هـواره کـړے شي او بيا پـه بدن کښېښـودے شي .پلټمي . د اوړو وغېـره يوټلۍ (غوټه) چې د ټکور دپاره پکاروله شي.پټکے دستار.

**لپکي** :- (ل + پ + ک + ی)(اس، مـو) د لرگـي ځمڅـۍ غونـدې چې د اوبـو ځنبلو دپاره دکوهي يا حوض په خواکښې ايښـودے شـوے وي. د جرنده گـرې پيمانـه .هغـه لپـه چې د درمنـد د پورتـه کولـو پـه وخت مسـکينانو عاجزانو له ورکولے شي.

**لپنگ** :- (ل + پ +ن + گ)(صف ، مذ ، مـو ـــ) قـلاش ،تش لاسے ،مفلس ، لفنگ لُوچه،خوشاټارے ،بدمعاش ،بدچلنه سړے.

**ـــ کېدل** :- بې پيسوټکوکېدل ،مفلس کېدل ، بې ماله کېدل ، قلاش کېدل . خوشاټارے کېدل ، لوچه کېدل.

**لپنگے** :- (ل + پ+ ن+ گے)(اس ، مذ ، ج ـــ گي) د لپنگ سپک شکل دے.

**لپو** :- (ل +پو) د ,,لپې،، مجروري وغېره حالت چې د مغيره ؤ توروسره راځي.

**په ـــ لپو** :- (پ ـــ ل +پو) مجازاً ډېر زيات مقدار کښې. لکه :په لپو لپو زر ويشل ، ډېر په ارت لاس سخاوت کول.

**په ـــ لپو اوښکې بهول** :- ډېرې زياتې اوښکې تويول.ډېر زيات ژړل / ،جړل.

**لپوس** :- (ل + پو + س)(صف ،مذ ، مو ـــ ه) مفلس ،خوار ، غريب.

**لپونکے** :- (ل + پو + ن + کے)(اس، مذ) يو بوټے چې تريو خوړ وي .خوړلے کېږي.

**لپه** :- (ل + پ)(اس ، مو ، ج ـــ پې) لـپ ، چې دواړه لاسونه يو بـل سره يو ځاے او پيالـه غونـدې ترې سازه کړي.دې تـه لپـه وائي. د اوړو يـاد بـل کوم داسې څيز دومره مقدار چې په يوه لپه کښې راځي.

**لپې لپې** :- (ل + پې + ل +پې) مجازاً ډېر مقدار کښې.

**ـــ اوښکې په مخ راتلل / بهول** :- ډېر زيـات مقدار کښې اوښکې بهول ، ډېر زيات ژړل / جړل.

**لپي** :- (ل +پي)(اس ، مذ ، ج ـــ پي) پاؤ (قدرې څيـز) يو پيمانـه چې د کابـل سېر شپاړسمه برخه وي.

**لپيت** :- (ل + پي + ت)(اس، مذ) د پنير اوبۀ .

**لت** :- (ل + ت)(اس ، مع) د پالاؤ ځانگه ده لوني دي.

**لت** :- (لَ + تْ)(اس مذ ، ج ـــ ونه) د لته مخفف دے.(شاذ).

**ـــ مار** :- (ـــ ما + ر) لتې وهونکے ، هغه چې بل په لته وهي.

**لتاړ** :- (لَ/لي + تا + ړ)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) د پښو لاندې دل شوے ، د پښو لاندې چخښي شوې.راگېر، ښتے ، لت پت. لکه : په غم لتاړ .يا : په مشکلاتو باندې لتاړ وۀ. تباه او برباد .

**ـــ کېدل** :- د پښو لاندې دل کېدل ، د پښو لاندې چخښي کېدل.

پـه ظاهـر صورت خـو هسې معلومېږي

چې به خس غوندې تر پښو لاندې لتاړ شي (رحمان بابا)

برباد بدل ، تباه کېدل.

**لت پت** :- (ل + ت + پ + ت) (صف ، مذ ، مو ـــه ـــه) ککړ ، الوده.

**ـــ کول** :- ککړول ، الوده کول. لټ په لټ کول. لاندې باندې کول.

ځو دې حق موندلے نۀ وي مه جاروزه

په دا مرسته دا جهان واړه لت پت کړه (رحمان بابا)

**لتو** :- (ل + تو) د ,, لتې ،، مجروري وغېره حالت ، چې د مغېره ؤ تورو سره راځي

**په ـــ وهل** :- د پښو په ذريعه چاله سخت ټوکرونه ورکول.

**لته** :- (ل + تَ) (اس ، مو ، ج ـــ تې) علاقه ، سيمه ، خطه ، ملک.

چې مې ناسته د صورت په هسې ځاے ده

چې ثنا ئې په لته د هندو بـــار شي (خوشحال)

**لته** :- (ل + تَ) (اس ، مو ، ج ـــ تې) جامه ، لباس.

**لته** :- (ل + تَ) (اس ، مو ، ج ـــ تې) په پښه (ښپه) باندې گذار ، په پښه (ښپه) وهنه. (ف : لت . اُر : لات).

**ـــ ورکول** :- په پښه (ښپه) ټوکر ورکول. په پښه زور سره وهل. دځانه لرې کول ، پرېښودل ، ترک کول ، نۀ قبلول.

**ـــ وهل ، په څۀ کار کښې** :- په کوم کار کښې اړيکه اچول. انکار کول.

**په ـــ وهل** :- سپکاوي سره د پښې ټوکر ورکول. پرېښودل ، ترک کول.

ماد دهر غم وهلے دے په لته

د پيالې د صراحۍ د برکته (رحمان بابا)

په پښه باندې گذار ورکول.

بـل مه وهه په گوته تا به نۀ وهي په لته. (متل).

**لتې** :- (ل + تې) د ,, لته ،، جمع ده . د ,, لته ،، مجروري وغېره شکل چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ ټکول** :- پښې په يو بل مړل ، مجازاً اضطراب او تکليف ځرگندول ، تړپېدل . ضد کول ، په خپله مطالبه ټينگېدل . (خصوصاً د ماشومانو په حقله وئيلے شي).

**ـــ خوړل** :- وهل خوړل ، خصوصاً هغه وهل چې د پښو (لتو) په ذريعه وي . ټوکرونه موندل ، ټکرې موندل ، تکليف ور رسېدل.

**ـــ ورکول** :- په پښه (ښپه) باندې په زوره زوره مسلسل وهل.

**ـــ وهل** :- په روان کار کښې ورانے پيدا کول ، کار خرابول ، کار په صحيح ډول نۀ کول. انکار کول.

**لټ** :- (ل + ټْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) په ارټ کښې هغه لرگے چې چکلۍ پرې گرځي.

**لټ** :- (لَ + ټْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) کوړکۍ ، د مرغو د نيولو اله . په کوړکۍ کښې لومبرې گيدړان او نور ځنگلي ځناور نيولے شي.

**ـــ کښېښودل ، چاته** :- کوړکۍ کښېښودل ، دام خوړول . د چا د راگېرولو دپاره دوکه او فريب کول.

**لټ** :- (لَ + ټْ) (صف ، مذ ، مو ـــه) په کار کښې سست ، کاهل ، ارام طلبه ، ناراسته.

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب).

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے) (اس ، مذ) سستي ، کاهلي ، ناراستي.

**ـــ تيا** :- (ـــ ت + يا) (و ـــ لټ توب).

**ـــ کېدل** :- په تلو تلو کښې اودرېدل . اودرېدل ، مخکښې نۀ تلل ، په مېنځ کښې پاتې کېدل.

چې گولۍ د بېلتانۀ شوه په ما لټه

يو ځل مې ئې ملا ماته کړه چوړلټه (عبدالعظيم)

**لټ** :- (ل + ټ) (اس ، مذ ، اړخ ، ډډه ، پهلو (عموماً نورو الفاظو سره راځي).

**ـــ په لټ کول** :- لاندې باندې کول ، اړول را اړول . لټون د پاره ځيزونه لاندې باندې غورځول ، مجازاً ډېر زيات يا په هر ځاے کښې لټول.

**ـــ په لټ کېدل** :- لاندې باندې کېدل ، ښکته پورته کېدل ، گډ وډ کېدل ، تس نس کېدل . د کوم ځيز په لټون کښې د ځيزونو گډ وډ کېدل ، مجازاً ډېر زيات يا په هر ځاے کښې لټون کېدل.

**لټ** :- (ل + ټ) (هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د ښځو د وېښتو يو طرف ته کمځۍ کړے لړ ، د زلفو يو لړ.

په سپين مخ ئې راخور کړے

دا د تورو زلفو لټ دے (ارزاني زړه پانگه)

**لټا** :- (ل + ټا) (حمص) لټون ، لټونه ، تلاش ، جستجو.

**ـــ کول** :- لټول ، لټون کول ، جستجو کول ، تلاش کول.

**لټ پټ** :- (ل + ټ + پ + ټ) (مف) ښکته پورته ، لاندې باندې (د لټولو په معنٰی کښې راځي).

**ـــ کول** :- ځيزونه وغېره لاندې باندې کول ، اړول را اړول ، ديخوا اخوا کول ، گډ وډ کول.

**ـــ کېدل** :- لاندې باندې کېدل ، اړول را اړول ، گډ وډ کېدل (خصوصاً د لټون او تلاش د پاره).

**لټپټي** :- (ل + ټ + پ + ټ + ی) د لټپټے تانيث دے.

**لټپټے** :- (ل + ټ + پ + ټے) (صف ، مذ ، ج ـــ ټي) بازيگرې اړوونکے ، بازيگر (کونتر).

**لټپېر** :- (ل + ټ + پې + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د هلکانو په يوه لوبه کښې د هلکانو په يو بل پرېوتنه . ناڅاپه يکبارگي حمله . په دښمن په گډه ورغورځېدنه.

**ـــ جوړول ، په چا** :- د هلکانو په لوبه کښې د هلکانو په يو هلک ورغورځېدنه . په دښمن ناڅاپه او يکبارگي ورغورځېدل.

**لټ کوپړې** :- (ل + ټ + کو + پ + ړ + ی) (اس ، مو) (مذاقاً) سازاوسامان ، سامان او اسباب ، کډه کوډه.

**لټکه** :- (ل + ټ + ک) (اس ، مو ، ج ـــ کې) د ټوپک ماشه ، ليندکۍ.

**لټکه** :- (ل + ټ + ک) (اس ، مو ، ج ـــ کې) د مارانو يو قسم ، کورمالينډۍ.

د معنٰی په سترگو گوره که دانائې

په ظاهر جامه که ښۀ بربښي لټکه (خوشحال)

د سمسرې يو خطرناک قسم.

**لټکه** :- (ل + ټ + کَ) (اس ، مو ، ج ـــ کې) پڅه او بې کاره تُوره.

**لټل** :- (ل + ټ + ل) (مص) پاڅېدل ، له ځانه ولاړېدل او درېدل.

**لټلے** :- (ل + ټ + لے) (اس ، مف ، ج ـــ لي) له ځايه پاڅېدلے ، له ځايه پورته شوے.

**لټند** :- (ل + ټ + ن + د) (صف ، مذ ، مو ـــ) ناقلاره ، بې ارامه ، متجسس ، لټون کوونکے.

**لټول** :- (ل + ټ + ؤ + ل) (مص) تلاش کول ، لټون کول ، جستجو کول ، په چل چل د چا د زړۀ حال يا رائې معلومول . په حرکت کښې راوستل . د مچو پارول.

**لټول** :- (ل + ټ + ؤ + ل) (مص) لټ کول ، ناراسته کول (په کار کښې) سستول.

**لټون** :- (ل + ټو + ن) (حمص) تلاش ، جستجو ، لټونه ، تجسس.

**لټونه** :- (ل + ټ + ؤ + نَ) (حمص) لټون ، تلاش ، جستجو ، پارونه ، په حرکت کښې راوستنه.

**لټوونکے** :- (ل + ټ + وو + ن + کے)(اس ، فا ، ج ـــ کي) تـلاش کـوونکے ، جستجو کوونکے ،تجسس کوونکے.

**لټه** :- (ل + ټَ)(اس ، مو ، ج ـــ ټې) دزړۀ دننه غم ،زړۀ خوړنه ، ځان زهيرونه ، نو (دزړۀ).

**ـــ کول** :- غم کول ،نولېدل ، زړۀ خوړل.

**لټه**:- (ل + ټَ)(اس ، مو ، ج ـــ ټې) لټون،تجسس ،جستجو. کنجکاوي.

**ـــ کول** :- تلاش کول،لټون کول،تجسس کول ، کنجکاوي.

**لټه** :- (ل + ټَ)(اس ، مو ، ج ـــ ټې) سـان ، تکيـه، سپينه سوتي کپړه. (هـ لټها)

**لټي** :- (ل + ټي)(اس ،مو) لټ والے ،سسـتي ،ناراستي ، په کـار کنبـې درغلي.

**ـــ کول** :- سستي کول ،ناراستي کول ، کاهلي کول.

**لټيا**:- (ل + ټ + يا)(اس ، مو )لټ توب ، سستي ، ناراستي.

**ـــ کول** :- ناراستي کول (په کار کنبې) سستي کول ، په کار کنبې لټ کېدل.

**لټېدل** :-(ل + ټې + د + ل)(مص) لټولے کېدل ، لټون کېدل ، په لټولو سره پيدا کېدل ، بيا موندے کېدل. د مچو وغيره پارېدل.

**لټېدل** :- (ل + ټې + د + ل)(مص) لـټ کېـدل ، سسـتېدل (پـه کـار کنبـې) . ناراستي کول. د کار نه انکاري کېدل ، په روان کار کنبې کار پرېښودل ، په ضد کېدل.

**ټېره** :- (ل + ټې + ر)(صف ، مذ / مو) په کار لټ، په کار کنبې سست ،کاهـل ، ناراسته. خوشې گرځېدونکے ، اواره گرد.

**لټينگر** :- (ل + ټي + ن + گ + ر)(اس ، مذ ، ج ـان) يو قسم غټ ملخ، ټنبل ملخ.

**لثـق** :- (ل + ث + ق)(ع ، اس، مـذ) نمجنـي ،لونـد والـے ، خوشـتوالے ، خيشتوالے

**لثم** :- (ل + ثَ + م)(ع ، اس ، مذ) مُچه ورکول ، خولۀ ورکول ، بوسه ورکول.

**لثه** :- (لَ / لِ + ثْ + ثَ)(ع ، اس ، مو) أوري ، ووري.

**لج** :- (ل + ج)(ع ، اس ، مذ ، ج ـونه) لته، په پښه ټوکر ورکونه. لکه: د خرۀ لج.

**لج** :- (ل + ج)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ضد ، هوډه ، ځېل.

**ـــ کول** :- کينه لرل ، دښمني کول ، بغض لرل.

**لجام** :- (ل + جا + م)(ع ،اس ،مذ ، ج ـــ ونه) واگه ، عنان ، لگام.

**لجلاج** :- (ل + ج + لا + ج)(اس ، مع) د يـو هنـدي نـوم چې شطرنج ئې ايجـاد کړےوۀ. د چوسر يا د شطرنج ماهر.

**لجلاج** :- (ل + ج + لا + ج)(ع ، صف) ترټرے ، هغه چې په خبرو کنبې ئې ژبـه / جبه ننبلي.

**لجم** :- (ل + ج + م).

**لجن** :- (ل + ج + ن)د تالاؤ يا د حوض په تل کنبې بدبويه لهه.

**لجه** :- (لُ + جْ + جَ)(ع،اس، مو ، ج ـــ جې / لجج) دريـاب ، د دريـاب تـل ، غولې ، گرداب.

**لجين**:- (لُ + جي + ن)(ع ، اس ، جم )سپين زر ، خالصه چاندي.

**لځانه** :- (ل + (د) زا + نَ)(پ تر ، حرف) لـه ځانه ،لـه خپـل طرفـه،د خپـل جيب نه.

**ـــ خبري کول / جوړول** :- بې اصله خبرې کول ،دروغ جوړول.

**ـــ ورکول** :- د خپل جيب يا کورو غيره نه ورکول. خپل ځيز ورکول.

**لچ** :- (لَ + چ)(ف ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) بربنډ ،برمنډ ،برهنه،لغړ،بدچلنده، بد کار ، اواره.

**لچ** :- (ل + چ)(اس ، مذ) يو مرض چې په سترگه يا په گوته کنبې پيدا کېږي.

**لچ** :- (ل + چ)(ف ، اس ، ج ـونه) بارخو ، انانگے ، رخسار.

**لچ** :- (ل + چ)(اس ،مذ) د يو بوټي نوم. چې دمختلف رنگونو گلونه کوي. د گل ختمي له قسمه دے وائي. چې ددې بوټي د وښکلو وغيره په وجه د ,, لچ ،، مرض گوتو ياسترگو ته اولگي.

**لچ** :- (لِ + چ)(ف ، اس ، مذ) د زخم يا پړکے ،تپرى د زخم.

**لچر** :- (ل + چ + ر)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) کمينـه ، رذيـل ، بد اخلاقـه ، شتا ، بې شرمه ، بې حيا.

مشران مې لابلا دي

کشران دي لالچـر (خوشحال)

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب).

**ـــ تيا** :- (ـــ ت + يا)(اس ، مذ ، (۱) مذ (۲) مو) بې حيائي، بې شرمي ، بد اخلاقي ، کمينه توب ، رذالت.

**لچرکے** :- (ل + چ + ر + کے)(اس ، مذ ، ج ـــ کي) شوخ ،بې حيا ، بې شرم.

**لچري** :- (ل + چ + ري)(اس ، مو) لچرتوب ، بې حيائي ، بې شرمي.

**لچک** :- (ل + چ + ک)(اس ، مذ ،ج ـــ ونه) سرپېچک ، هغـه تور رومـال چې زنانه پرې سر تړي.

**لچک** :- (ل + چ +ک)(اس ، مذ ،ج ـــ ونه) ماشوره.

**لچک** :- (ل + چ + ک)(هـ ، اس ، مـذ) د ربړ په شان خاصيت ، چې راښکلو سره راښکے شي. يا کوږ شي. خو چې زور ترې لرې شي نو بيا خپـل حالـت تـه راشي.

**لچن** :- (ل + چ + ن)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) بربنډ ،لغړ ،لځ.

**لچن** :- (ل + چ + ن)(صف ، مـذ ، مـو ـــ ه) هغـه سړے چې د ,,لچ ،، مـرض ئې په سترگو يا په گوتو لگېدلے وي. (و ـ لچ).

**لچه** :- (ل + چَ)(اس ، مو ، ج ـ چې) تادي ، جلتي ، جلدبازي.

**ـــ کول** :- تادي کول ،جلتي کول ،جلد بازي کول.

**لځ** :- (ل + (ت) س)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) بربنډ ،لغړ ،برهنه ، برمنډ ،غريب ، نادار ، مفلس.

**ـــ پخ** :- (ـــ پ (ت) س)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) بېخي لځ ،بالکل بربنډ.

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب).

**ـــ تيا** :- (ـــ ت + يا)(اس (۱) مذ (۲) مو) لځ والے ،بربنډوالے ،لغړتوب.

**په ـــ سر** :- (پ ـــ س + ر)(پ تر ، تف) سر سرتورے ، کنايـه غمجـن ، په ماتم کنبې د مړو و مخ ته په لځ سر ناستې وي.

**لځـاوو** :- (ل + (ت) سـا + وو)(اس ، مـذ) ځرگنـدوونکے ،ښـکاره کـوونکے ، کشاف

**لځول** :- (ل+ (ت) س + ؤ + ل)(مص) بربنډول ، برهنه کـول ، لغـړول ، د تيکي ابستل ، لکه توري ئې لځې کړې. شرمه ول ، حيا اخستل.

**لځونه** :- (ل + (ت) س + ؤ + ن)(حمص) بربنډونه ، لغـړول ،ځرگندونه ، ښکاره کونه. توره وغيره د تيکي نه ابستنه.

**لځوونکے** :- (ل ى(ت) س + وو + ن+کے)(اس ، فا ، مذ ،ج ـ کي) بربنډوونکے ، لغړوونکے ، ښکاره کوونکے ، ځرگنده وونکے.

**لځېدل** :- (ل + (ت) سې + د +ل)(مص) بربنډېدل ، لغړېدل ، برهنـه کېـدل. له / د تيکي نه باهر وتل ، لکه توري لځې شوې. حيـا تلـل ، شرمنده کېدل.

**لځېدۀ** :- (ل + (ت) سې + د )(حمص) بربنډېدۀ ، لغړېدۀ ، بربنـډوالے ، برهنگي . ښکاره کېدۀ ، کشف کېدۀ.

**لحـاظ** :- (ل + حـا + ظ)(اس ، مـذ ، ج ـــ ونـه) نظر ،کتنـه ،نگـاه ،خـاطر ،

رعایت ، مروت ، پاس ، شرم ، حیا ، پرده خیال ، فکر ، پام ، توجه ، طرفداري ، پاس داري ، پره کونه.

**ـــــ کول** :- ادب کول ، پاس لرل ، رعایت کول ، د مرتبې خیال ساتل ، مروت کول ، خیال ساتل ، طرفداري کول ، پره کول.

**لحاف** :- (ل+حا+ف)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــونه) بړستن، نالۍ ، توشک ، براستون.

**لحان** :- (ل+ح+حا+ن)(اس ، مذ ، ج ـــان) سندر غاړے ، ګویا ، خوش اوازه

**لحد** :- (ل+ح+د)(ع ، مذ ، ج ـــونه / لحود) سامۍ ، اړخیز قبر ، د مړي د اېښودو ځاے ، ګور.

**تور ـــ** :- (تو+ر ـــ)(عپ ، تر ، مذ ، ج ـــونه) تیارۀ لحد ، لحد چې په کښې تیارۀ وي.

**لحظه** :- (ل+ح+ظه)(ع ، اس ، مؤنث) ساعت، ګړۍ، شیبه ، د سترګو رپ

**ـــ په لحظه** :- (ـــ په+ل+ح+ظَ)(عپ ، تر ، اس ، ظ) ساعت په ساعت ، ګړۍ په ګړۍ ، شیبه په شیبه.

**په یو (ه) ـــ کښې** :- په لږ ساعت کښې ، په یوه ګړۍ کښې ، په ان فن کښې.

**لحم** :- (ل+ح/ح+مْ)(ع ، اس ، مذ) غوښه ، ګوشت.

**لحن** :- (ل+ح+ن)(ع ، اس ، مذ) خوش اوازي ، خوږ اواز ، د اواز انداز ، د اواز موزونیت.

**لحود** :- (ل+حو+د)(ع ، اس ، ج) د „لحد،، جمع ده.

**لحیم** :- (ل+حي+م)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) غوښن ، غټ ، ځورب.

**لحیه** :- (ل+ح+ي)(اس ، مو ، ج ـــ يې) ږیره.

**لخ** :- (لُ+خ)(ف ، اس ، مذ) لُومه ، یو قسم واښۀ چې پوزي وغېره ترې جوړولے شي. کوږ ، ټیټ ، خمیده.

**لخت** :- (ل+خ+ت)(ف ، اس ، مذ) ټکړه ، پاره، ټوټه.

**ـــ جګر** :- (ـــ (تې) جي+ګ+ر)(ف تر ، اس ، مذ) د ځیګر ټکړه ، مجازاً زوے.

**لخت** :- (لُ+خ+ت)(ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) بربنډ ، لغړ ، لڅ.

**لختي** :- (لُ+خ+تي)(ف ، اس ، مو) بربنډوالے ، برهنګي.

**لختے** :- (ل+خ+تے)[ل+ښ+ت+ے ، لښتے](اس ، واحد ، مذ) ناله ، وله ، پټو ته د اوبو د تلو لار.

**لخجه** :- (ل+خ+جَ)(ف ، مو ، ج ـــ جې) د اور لمبه، لنبه ، شعله.

**لخچه** :- (ل+خ+چَ)(و ـــ لخجه) شعله، لمبه.

**لخچې** :- (ل+خ+چې)(اس ، مذ ، ج ـــ چي) یو قسم پخکړے ، چې قروتو سره پخولے شي.

**لخړ** :- (ل+خ+ړ)(اس ، مذ) نیم پاؤ.

**لخړه** :- (لُ+خ+ړَ)(اس ، مو ، ج ـــ ړې) لوخړه ، لوګے، ګور لوګے.

**لخک** :- (ل+خ+ک)(اس ، مذ ، ج ـــونه) د دروازې چوڼ ، چتے.

**لخکي** :- (ل+خ+کي)(اس ، ج) د غنمو بوټي چې رنګې رنګي یا ځان ځان له شوي وي.

**لخلخ** :- (ل+خ+ل+خ)(ف ، اس) کمزورے ، مانده ، ډنګر ، نرے ، هغه اواز چې غاړې د اوچېدو له کبله ووځي.

**لخلخه** :- (ل+خ+ل+خ)(ف ، مو ، ج ـــ خې) د مختلفو خوشبویه څیزونو ګډون چې بېهوش سړي ته وربونیوئي . یا د مغزو د طاقت دپاره بونیولے شي.

په هرچېن کښې ئې د څنو مشک دچین دے
لخلخې ځـــنې تـــوئېږي چـــې په لار ځي (خوشحال)

**لخم** :- (لُ+خْ+م)(ف ، صف) هغه غوښه چې په کښې هډوکے نۀ وي مجازاً غټې غټې شونډې. پسته غوښه. بې هډوکي غوښه.

**لخه** :- (ل+خ)(اس ، مو ، ج ـــ خې) یو وړه شان خړ رنګې مرغۍ.

**لد** :- (ل+د)(اس ، مذ) ختهٔ ، سوټې وغېره چې یو ځاے شوئ وي او اوبجنې وي.

**لد** :- (لَ+دْ)(اس ، مذ ، ج ـــونه) ترنګړ ، چې په کښې لرګي یا واښۀ وغېره وتړي او په خر ئې باروي.

**لد** :- (لَ+دْ)(اس ، مذ ، ج ـــونه) د قمیص لمن.

**لد** :- (لَ+دْ)(ف ، اس) دښمن ، دښمن ، غلیم.

**لد** :- (ل+دْ)(هـ ، اس ، مو) خاشۀ ، لډو.

**لداخ** :- (لَ+دْ+دا+خ)(اس مع) په کشمیر کښې یوه صوبه.

**لدړه** :- (ل+د+ړَ)(اس ، مو ، ج ـــ ړې) ډېرۍ، ټپ ، کثرت او ډېر والے.

**لدن** :- (ل+د+ن)(و ـــ لنډن)

چرته لدن چرته چترال دے
بې تنګي زورشوه پېرنګي چترال له ځینه (ټپه)

**لدني** :- (ل+دُ+ن+ني)(ع ، صف) هغه علم چې خداے پاک د طرفه د وحي په ذریعه بغېر د زده کړې ورکړے شوي وي. هغه علم وغېره چې خداے پاک چاله د خپله ځانه د خپل فضل نه ورکړي یعني چې په دې کښې د دغې سړي خپله زده کړه او کوښښ شامل نۀ وي.

**لډامے** :- (ل+ډا+مے)(اس ، مو ، ج ـــ مې) هغه رېښمین رومال چې د نوي زېږېدلي ماشوم په مخ غوړولے شي.

**لډر** :- (ل+ډَ+رْ)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) کم عقل ، بې دانسته ، بې وقوف.

**لډر** :- (ل+ډ+ر)(اس ، مذ ، ج ـــ ان) کباړي ، زاړۀ څیزونه خرڅوونکے . خوشاتارے ، اواره ګرد.

**لډره** :- (ل+ډ+رَ) د „لډر،، تانیث دے.

**لډو** :- (لَ+ډُو)(اس ، مذ ، ج ـــ ان) یو قسم متیائي.

**لډو** :- (ل+(ډ)+ډُو)(اس مذ) خاشیه ، د اس ، خر یا د قچر ګندګي، لدْ.

**لډه** :- (لَ+ډَ)(اس ، مو ، ج ـــ ډې) د وښو وغېره نه جوړه شوې ټوکرۍ . پچې.

**لډه** :- (ل+ډ)(اس ، مو ، ج ـــ ډې) منجیله.

ضعیف خس که د اندوه کوۀ له ستوه
چـــې بېدل په سر د غم کړه ورتـــه لډه (بېدل)

**لډي** :- (ل+ډي)(صف) د مرزانو یو قسم.

**لذا** :- (لِ+ذا)(ع ، حرف) نو ، له دې کبله ، په دې بنا.

**لذات** :- (لَ+ذ+ذا+ت)(ع ، صف) د „لذیذ،، جمع ده. لذائذ.

**لذت** :- (ل+ذْ+ذَ+تْ)(ع ، اس ، مو) خوند لطف مزه ، ذائقه ، (عام طور سره د لام زبر سره وئیلے کېږي).

**لذیذ** :- (ل+ذي+ذ)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) لذت واله ، خوندناک ، مزه دار ، مزېدار.

**لر** :- (لَ+رْ)(ف ، صف) مانده ، نَرَے ، ډنګر.

**لَر** :- (لَ+رْ)(ف ، اس ، مذ) زنځیر ، کړۍ ، سلسله.

**لر** :- (لَ+ر)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) ښکته ، کوز ، لاندې، لاندینے ، ښکتنے ، کوزنے. دکمې درجې ، ادنٰی ، کم قیمته.

**ـــ بر** :- (ـــ بَ+رْ)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ـــ ه) ښکته پورته ، کوز پاس ، لاندې باندې. د ښکته او پورته دواړو سیمو د هرې علاقې ، ټول ، همه. مجازاً ګډوډ ، تباه ، بدحال.

**ـــ بر کتل** :- لاندې باندې کتل ، ښکته پورته کتل.

**ـــــ بر کول** :- لاندې باندې کول ، گډوډ کول ، بې ترتیبه کول ، مجازاً تباه کول ، بربادول ، کمے زیاتے راوستل۔

**ـــــ بر کېدل** :- ښکته پورته کېدل ، لاندې باندې کېدل ، گډ وډ کېدل ، بې ترتیبه کېدل ، مجازاً تباه کېدل ، بربادېدل۔

**ـــــ پښتانۀ** :- (ـــــ پ + خ /ش + تا + ن) (پ تر ، اس ، ج) هغه پښتانۀ چې په کوزه سیمه کښې اوسي۔

**ـــــ و بر** :- (ـــــ (رو) بَ + ر) (پ تر ، اس ، ظ) ښکته او پورته ، لاندې او باندې ، ښکته علاقه او بره علاقه ، مجازاً هر طرف ته۔

**لُـر** :- (لُ + ر) (ف ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) (۱) د لرستان اوسېدونکے ۔ (۲) مجازاً ساده ، کم عقل ، جټ۔

**لرز** :- (لَ + رْ + ز) رپېدونکے۔

**لرزان** :- (لَ + ر + زا + ن) (ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) په لرزه ، په لړزه ،لړزاند ، رپېدونکے۔

**لـرزش** :- (ل + ر + زِ + ش) (ف ، اس ، مـذ ، ج ـــ ونـه) رپـنـدے ، رپېدنـه ، لړزېدنه ، ربړدېدنه ، دگېدنه۔

**لرزے** :- (ل + ر + زَے) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ زي) لرزش ، لرزېدنـه ، رپے ، رپېدنه ، رپندے۔

**لـرزے** :- (لَ + رْ + زَے) (اس ، مـذ ، ج ــــ زي) خـاص قسم دستانه چې د کومو سختو بُوټو د رېبلو په وخت په لاس کولے شي۔لاس ماغه ، دسکله۔

**لرشين** :- (ل + ر + شي + ن) (اس ، مذ) هغه سوټې چې لاد ښاروي په لـرې کښې وي۔لړشین ، لړشم ، لړشن هم ورته وائي۔

**لرغون** :- (ل + ر + غو + ن) (اس ، مذ) اول ، پخوا ، زوړ۔

**ـــــ توب** :- (ـــــ تو + ب) (پ تر ، اس ،مذ ، ج ـــ ونه) زړتوب ، پخوانے والے ، سابقیت۔

**ـــــ تـون** :- (ـــــ تـو + ن) (پ تر ، اس ، مـذ ، ج ـــ ونـه) د پخـواني څیزونـو ځاے ، (نوے لفظ دے)۔

**ـــــ والے** :- (ـــــ وا + لے) (پ تر ، اس ، مذ) زوړ والے ، پخوانے والے ، لرغـون توب

**لرغونی** :- (ل + ر + غو + نَ + ی) د "لرغونے" ، تانیث۔

**لرغونے** :- (ل + ر + غُـو + نے) (اس ، ظ ، مـذ ، ج ـــــ ني) پخوانے ،اولنے ، سابقه

بیادې نوي پرهرونه په ما روغ کړۀ

لرغوني مې لاروغ ندي ځینې ځینې (خوشحال)

**لرغے** :- (لَ + ر +غے) (اس ، ظ) پخوا ، لرغون ، دمخه د لرغیـه راسې بهشت دوزخ دواړه موجود دي۔(دروېزه)۔

**لرگبانه** :- (ل + ر + گ + با + ن) د "لرگبنه" ، جمع ده۔د لرگیو کار کوونکي۔

**لرگبنه** :- (ل + ر + گ+ ب + ن) د "لرگبه" ، تانیث دے۔

**لرگبه** :- (ل + ر + گ+ ب) (پ تر ، اس ، فا) لرگي د غـرۀ نـه پـرې کوونکے او خرڅونکے۔لرگي فروش۔

**لرگو**:- (ل + ر + گو) د لرگي (جمع) مجروري وغېره شکل چې د مغیـره ؤ تورو سره راځي۔

**د ـــ کور** :- (د ـــــ کو + ر) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه کور چې (ټول) د لرگونه جوړ شوے وي۔

**د ـــ منډی** :- (د ـــ م +ن + ډ +ی) (پ تر ، اس ، مو) هغه بـازار چرته چې د ابادۍ لرگي خرڅېږي۔

**لرگي** :- (ل + ر + گي) د "لرگے" ، جمع۔د "لرگے" ، مجروري وغېره شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي۔

**لرگے** :- (ل + ر + گے) (اس ، مذ ،ج ـــ گي) د ونې یوه ټکړه (اُر : لکړی ،ف چوب)۔

**لرگیان** :- (ل +ر +گ + یا + ن) (اس ، مو) لرگیه ، لرگي خرڅوونکے۔

وځنگله وته روان شو

په ځنگله کښې دے لرگیان شو (رحمت دادي ، زړه پانگه)

**لرگین** :-(ل + ر + گي + ن) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) د لرگي نه جوړ شوے۔مانده او کمزورے سړے ، چې هډوکي ئې راوتے وي۔

**لرل** :- (ل + ر +ل) (مص) درلودل (اُر : رکهنا ،ف : درشتن)۔

**اغېزه ـــــ** :- (ا + غې + ز ـــــ) اثر لرل ، تاثیر لرل۔

**اهمیت ـ** :- (ا+هـ +مي+يَ +ت ـ)ضرورت لرل۔ضروري ،،بودل،، ۔

**غرض ـــــ** :- (غَ + رَ + ضْ ـــــ) مقصد لرل۔

**لرنه** :- (ل + ر + نَ) د ,,لرل ،، مصدر حاصل مصدر دے۔

**لرونکے** :- (ل + رو + ن + کے) (اس ، فا ،مذ ، ج ـــ کي) هغه کس چې څۀ څیز وغېره لري۔مالک۔ مجازاً مال دولت لرونکے ، مالدار ، شته من۔

**لرونه** :-(ل + رُو + نَ) (اس، مذ ، ج) د ,,لور،، ، جمع ده۔

**لرويه** :- (ل + رُو + يَ) (پ تر ، حرف) (د ,,له رویه ،، مخفف دے ) لـه کبلـه ، لـه قبله ، د لحاظ نه ، له مخه۔

**لره** :- (لَ + رَ) (فعل) د ,,لرل ،، مصدر نه دوامي امر چې ددُعا وغېـره پـه طـور وئیلے شي۔ لکه : خداے دې خوشحاله لره۔

**لره** :- (لَ+ رَ) (حرف) دپاره۔

یـــو زړۀ لــــره یـــوه اشنائي بس ده

نور به ډېرې یارۍ نۀ کوم سوگند دے (خوشحال)

**لري** :- (ل + ري) (اس ظ) د ,,لرې ،، بدل شکل دے ۔ځینې خلق د ,,لرې،، په ځاے ,,لري،، (غونډۍ ی سره) وائي ۔ نور الفاظ د ,,لرې ،، تر لاندې وگورئ۔

**لرې** :- (لَ + رَي) (صف ،مذ ، ج ـــ ري) لرکېدنه ، ماتې ، شکست ، بېلات (د ,,برے ،، ضدد دے)۔

**لرې** :- (ل + رې) (اس ، ظ) دُور ، په ډېره فاصله ، بېرته۔

ډېر دې بنۀ ووې خوشحاله

بس کړه ، مه درومه ډېر لرې (خوشحال)

**لرے** :- (ل + رَے) (اس ، مذ ، ج ـــ ري) د ښاروي دگېډې هغه برخه چې نیم هضم شوے خوراک په کښې پروت وي۔ (اُر : اوجهری)۔

**لړ** :- (لَ + ړ) (اس، مذ ، ج ـــــ ونه) سلسله ، ضمن ، حقله ، لکه : په دې لړ کښې۔قطار۔ هار ، امېل ، د امېل یو برغیز مزے ، د کیلوجُونېک۔

**ـــــ کول**:- په سلسله کښې پئیل ، امېل جوړول۔

**ـــــ کېدل** :- په یو مزي کښې پئیلے کېدل ، امېل یا هار جوړېدل۔

**لړاک** :- (ل + ړا + ک) (صف ، مذ ،مو ـــــ ه) جنگیالے ، د جنگ مړنے۔ جگړمار ، بد مزاجه ، شر خوښوونکے ، شري۔

**لړاؤ ښټاؤ** :- (ل+ړا + و + (ت) س+ ټا + و) (اس مذ) فضول خرڅي ، خصوصاً د بنۀ خوراک او د مزو چرچو دپاره خرڅ کوونه ۔ څۀ چې گټل هغه په گېډه وغېره لگول۔عیاشي ، د سبا غم نۀ کونه۔

**لړبکه** :- (ل + ړ + ب + کَ) (اس ، مو ، ج ـــــ کې) لړزه ،ربړدېدنه ۔غصه ، قهر۔

**ـــــ کول** :- غم غصه کول ، قهر کول۔ربړدېدل ، لړزېدل۔

**لړبکے** :- (ل + ړ +ب +کے) (اس، مـذ ، ج ـــــ کـي) لـړزه ، بې تـابي ،ناقلاري۔

**لړبوس** :- (ل + ړ + بو + س )(اس ، مذ ، ج ــــونه) کباب ،وریت.

د تن غوښه مې بلا سخته بوټي ده
چې لړبوس نهٔ شوه دعشق په کاره (حسين)

**لړپه** :- (ل + ړ + پَ)(اس ،مو ، ج ـــــ پې) مال دولت ، خصوصاً هغه مال چې وېړيا بغېر د مشقت نه/ ځخه په لاس راشي.

**لړزان** :- (ل + ړ +زا + ن )(و ـــ لرزان) په پښتو کښې کومه ,,ر،، چې د ,,د،، او د ,,ز،، نه اول راشي.هغه عموماً ,,ړ،، تلفظ کېږي.بخاري).

**لړزاند** :- (ل + ړ+زا + ن+ د )(صف ، مذ ، مو ـــــ ه) لړزېدونکے ، رېږدونکے ،رېږدېدونکے .وېرې اخستې ، وېرېدلے.

**لړزنده** :- (ل + ړ+ز + ن +د )(صف) لړزے واله ، رېږدېدونکے.

**ـــ تبه** :- (ــــ ت + ب )(پ تر ، اس ،مو ، ج ـــ بې) هغه تبه چې لړزے يا رېږدېدنې سره راځي .د سړه لړې واله تبه ، مليريا ، موسمي تبه ، د منې تبه.

**لړزو** :- (ل +ړ + ز + ؤ + ل )(مص) رېږدول ، په لړزه کول ، رپول ،رچول، درگول.په حرکت کښې راوستل.پارَول ،راپورته کول.

**لړزوونکے** :- (ل + ړ + ز + وو + ن + کے )(اس،فا، مذ ،ج ـــ کي) په لړزه راوستونکے ، رېږدوونکے . په رچ کوونکے . په حرکت کښې راوستونکے .

**لړزونے** :- (ل + ړ + زو+ نے )(اس، مذ ، ج ـــ لي) د اوښانو يو مرض دے چې په کښې ټوخېږي.

**لړزه** :- (ل + ړ + زَ) رېږندے ، لرزېدنه .رېږدېدنه ، رېږدندے ، رعشه ، (د ,, لرزه،، د پښتو تلفظ دے).

**لړزېدل** :- (ل + ړ+ زې + د + ل )(مص) رېږدېدل ، رېږدل ، رچېدل ، دگېدل ، په حرکت کښې راتلل.

**لړزېدلے** :- (ل + ړ + زې + د +لے )(اس ،مف ، مذ ، ج ـــ لي) په لړزه شوے ، په رچ راغلے ، په حرکت کښې راغلے.

**لړزېدونکے** :- (ل +ړ+ زې + دو+ ن+کے )(اس ،فا ، مذ ،ج ـــ کي) په لړزه ، رېږدونکے ، رچېدونکے ، رېږدېدونکے.

**لړسپ** :- (ل + ړ + س + پ )(اس ، مذ ) فرياد ، له ډېره درده ناقلاري ښکاره کول

ډېر به ما غوندې لړسپ له غمه وکا
چې لړې وروځې لړم ، زلفې منگور (حسين)

**لړشوبه** :- (ل + ړ + شو + ب )(اس ، مو ، ج ـــــــ بې) هغه اينگولے ( سالن) چې په کښې اوبهٔ د ضرورت نه زياتے وي . مجازاً بې خونده او بې مزې خوراک.

زهٔ که ستا په لړشوبو باندې پروت نهٔ وے
د سپي نوم بـه دې په ما باندې کښېښُ (خوشحال)

**لړشين** :- (ل + ړ + شي + ن )(و ـــ لرشين).

**لړغمے** :- (لړ + ړ + غ + مے )(صف ، مذ ، ج ـــــ مي) بې ارامه ، ناقلاره ، مضطرب.

**ـــ کېدل** :- بې ارامه کېدل،ناقلاره کېدل ، په اضطراب کېدل.

**لړغومے** :- (ل + ړ + غو + مے )(صف ، مذ ) غارت ، تباه.

**ـــ کول** :- غارت کول ،تباه کول.

**لړل** :- ( ل + ړ + ل )(مص) مائع څيز ، د لرگي وغېره په ذريعه ښهٔ خوزول ، چې هر څهٔ چې په کښې ورسره ښهٔ گډوډ شي . ککړ کول ، الوده کول.په کوم بدکار ، سازش ، يا جرم کښې بې موجبه شاملول يا راوستل.

**لړلے** :- (ل + ړ+لے )(اس،مف ، ج ـــ لي)ککړ ، الوده . په گناه قصور يا جرم کښې ککړ شوے.

الـــــوده ، لــــــــړلے درغـــــے درگاه ته
هېڅ مې نهٔ زده چې به حال د خوشحال څهٔ کړې (خوشحال)

**لـړم** :- (ل + ړ + م )(اس، مـذ ، ج ـــ ان) مشـهوره حشـره چې زهرناکـه لشـه لـري، کږدم ، عقرب (اُرـــ بچهو) .هغه سړے چې هېڅ بې هېڅه بـل بنيادم ته تکليف او نقصان رسوي.خوا مخوا ضرر رسوونکے.

داسمان پـه دولسـو برجونـو کښـې د يـو بـرج نـوم دے .عقـرب د يـوې مياشتې نوم.عقرب د ۲۴ اکتوبر نه/څخه تر ۲۳ نومبره پورې).

**ـــ مار** :- (ـــــ مـا +ر )(پ تـر ، اس، مـذ ) دواړه څيزونـه گزنـدا و تکليـف رسوونکي دي.بلکې د مار په چيچلو خو بنيادم مړ هم شي.مراد ترې د لړم او د مار په شان بل ته تکليف اوگزند رسوونکے دے.

هېڅ حکيم به ئې علاج د رنځ ونهٔ کا
خپل خويونه د سړي چې لړم مار شي (خوشحال)

**لـړم** :- (ل + ړ + م )(فعل) د ,,لړم،، مصدر نه/څخه د حال واحد متکلم صيغه .په مائع څيز کښې لرگے څمڅې وغېره وهلو سره دغه مائع گډوډوم.

**لړماچ** :- (ل + ړ + ما + چ )(اس ، مذ ) يو قسم پخکړے .چې د کُلمو ، لري وغېره نه پخه ولے شي.گوړماچ.

**لړمانبن** :- (ل + ړ + ما+ خ / ش)(اس ،مذ ، ج ـــــ ونه) د وجود دننه څيزونو ، زړهٔ ، ځيگر ،گردې وغېره مجموعه.

**لړمانه** :- (ل + ړ + ما+ ن)(اس ، مذ ) د ,,لړمون،، بدل شکل چې ځينو مغيره ؤ تورو سره راځي.

**لړمکه** :- (ل + ړ + م + ک )(اس ، مو ، ج ـــ کې) گرمکه ، گرمه دانه.

**لړمون** :- (ل + ړ + مو + ن )(اس ،مذ ، ج ـــ ونه) د بدن دننه اعضاؤ لکه د زړهٔ ځيگر پُښتورگي وغېره مجموعه ، لړمانبن.

پته مينه د سړي ننه لړمون خوري
د وښو تر لمبې بد وي اور د سړي (خوشحال)

**ـــ پخېدل** :- په ډېر تکليف کښې کېدل ، په برداشت او زغم سترے کېدل. د چا د لاسه ډېر تنگېدل ، پوزې له راتلل.

**ـــ په وينو ډکېدل** :- مجازاً ډېر غم پېښېدل ،لړمون اوبهٔ کېدل.

چې مې پان غوندې لړمون د وينو ډک شو
د سرو شونډو انفعال شــو راتـــه پېښ (حميد)

**ـــ شين کول** :- ډېر غم يا تکليف وغېره پېښول ، ډېر زيات مشقت ، زيار کښل

تفکر د شــــاعرۍ لړمون شين کا
د غليم دې په نصيب شي دا اشغال (خوشحال)

**لړمه** :- (ل + ړ + مَ)(اس ، مو ، ج ـــ مې) (و ـــ لړمۍ) د پيشوگو وغېره په وجه بدن مورې مورې کېدنه . هغه چينجے چې د غنمو يا د جوارو فصل کښې پيدا کېږي.او ددې د بوټو پاڼې خوري.

**لړمه** :- (ل + ړ + مَ)(اس ، مو ) د ,,لړم،، تانيث دے . د يو کلي نوم هم دے.

**لړمۍ** :- (ل + ړ + م +ۍ )(اس ، مو ) يوه بيماري ده چې په بدن باندې سرهٔ ټاکي راښکاره شي.

**لـړو** :- (ل + ړو )(صف ، مذ ) فضول خرڅه ، بې ځايه يا د خپل عېش دپاره خرڅ کوونکے.

**ـــ چټو** :- (ـــــ چ + ټو )(صف ، مذ ) فضول خرڅه ، هغه سړے چې د خپل عېش او ارام دپاره فضول خرڅونه کوي. وږسترگے، حرصي ، بې همته.

**لړو** :- (ل + ړو )(فعل) د ,,لړل،، مصدر نه د جمع متکلم حاصل صيغه.

**لړو چړ** :- (ل + ړو + چ ُ/چو + ړ )(اس، مذ ) فضول خرڅي ، بې ځايه ، (په خوراک څښاک ) خرڅ کونه ، اسراف.

**ـــــ کول** :- فضول خرڅي کول. اسراف کول.

**لړوخ** :- (ل + ړو + خ )(اس ، مذ ) يو قسم گياه ده. کارغه خپه.

**لړومي** :- (ل + ړو+ مي )(اس ، مذ ) گُمنامي ، ورک نومي.

**لړومے** :- (ل + ړو +مے )(اس ، مذ ، ج ــ مي ) مشتاق ،شوق لرونکے .په هسه.

نــهٔ ئې زهٔ يــوائې قتل پـــه غمزو يم
څوئې ما غونډې په در کښې دي لړومي (خوشحال)

دل شوے ، چخڼي شوے. اور لړونے ، سره مخه.

**لړومے** :- (ل + ړو + مے )(اس ، مذ ، ج ــ مي ) ورک نومے ، گمنامه.

**لړونے** :-(ل + ړو +نے )(اس ، مذ ، ج ـــ نې ) هغه لرگے يا سيخ وغېره چې څهٔ څيز پرې لړلے شي. اور لړونے ، لړومے.

**لړه** :- (ل + ړ )(اس ، مو ، ج ـــ ړې ) لړۍ ، قطار ، سلسله،جنگ ، جگړه.

**لړه** :- (ل + ړ )(اس ، مو، ج ـــ ړې ) دُونډ ،دوړه، گرد ، لوگے.

**لړه** :- (ل + ړ )(مص ) د ,, لړل ،، مصدر نه امر دوام .الوده کول ،گنده کول ، مائع څيز په خوزولو گډوډ کول.

**لړه غومے** :- (ل + ړ + غو +مے )(اس ، مذ ، ج ـــ مي ) پټ په غلا وړل ، چپر کول

**ـــــ کول** :- په پټه وړل ، غپبول ، چپر کول.

**لړۍ** :- (ل + ړ + ی )(اس ، مو ) د پوزې يو کالے ، چارگل.

**لړۍ** :- (ل + ړ + ی )(اس ، مو )د ,, لړ ،، تصغير دے. قطار ، سلسله.

**ـــ لړۍ** :- (ـــل+ ړ +ی )(صف ) هغه هميل وغېره چې گڼ لړونه يا مزې لري. چې په گلونو يا مرغلرو پئيلے شوې وي.

**لړيڅے** :- (ل + ړے + (ت ) سے ) (اس ، مذ ، ج ـــ څي ) کف گير ،سيخ وغېره .څمڅۍ چې اينگولے وغېره پرې لړلے شي.

**لـــزب** :- (ل + ز + ب )(ع ، صــف ، مــذ ، مــو ـــــ ه ) نښــتونکے ، چســپان کېدونکے.

**لـــزج** :- (ل + ز + ج )(ع ، صف ، مـذ ، مـو ـــ ه ) سلېښنـاکه ، سلېښ والـه ، نښتونکے،سلېښ،سرېښ (خوشت کړي ).

**لزند**:- (ل + ز + ن + د )(صف ، مذ ، مو ـــ ه ) ککړ ، الوده ، په وينو لړلے.

**لزوجت** :- (ل + زو + ج + ت )(ع ، صف ) سلېښ ،سلېښناکي ،چسپان کېدنه.

**لزوم** :- (ل + زو + م )(ع ، اس ، مذ ) لازم کېدنه ، ضروري ، لازم ، بيان ، د يو شاعر يا نثر نگار په اصطلاح يا فقره کښې يو څيز يا څيزونه راوړل.

**لزومي** :- (ل + زو + مي )(ف ، اس ) ضرورت ،حاجت ، لازم کېدنه.

**لژند** :- (ل + ژ + ن + د ) په وينو ککړ.

**لږ** :- (ل + گ / ژ )(صف ، مذ ، مو ـــ ه ) کم.

**ـــ چکي** :- (ـــ چ + کي ).

**ـــ څکي** :- (ـــ (ت ) س + کي )(پ تر ، حرف ) د مقدار تورے ، لږ غونډې ، لږ شان مقدار.

**ـــ شانې** :- (ـــ شا + نې )(حرف ) د مقدار تـورے .په لږ مقدار کښې يو پوتے ، پوتسکے شان ، لږ قدر.

**ـــ غونډې** :- (ـــ غ + ن + ډے )(و ـــ لږ شان ).

**ـــ کوټې** :- (ـــ کو + ټې )(پ تر ، حرف ) د مقدار تورے دے .لږ شان ، په لږ مقدار کښې ، يو پُوتے.

**ـــ لږ** :- (ـــ ل + گ / ژ )(حرف ) د مقدار تورے ، په لږ ، لږ اندازه.

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے )(پ تر ، اس ، مذ ) کمے ، قلت.

**په ـــ څهٔ کښې** :- (پ تر ، مف ) په معمولي شان فرق سره ، په معمولي شان غلطۍ يا تاخير وغېره.

**لږوبه** :-(ل + گو / ژو + ب )(پ تر ، اس ، مو ) د اوبو کمے ، د اوبو قلت ، د اوبو تنگسيا.

**لږول** :- (ل + گ / ژ + ؤ + ل )(مص ) کمول ، کمے راوستل ، تخفيف کول.

**لږون** :- (ل + گو + ژو +ن )(اس ، مذ ) کمے ،کماوخت ، قلت ، تخفيف.

**ـــــ کول** :- کمے راوستل ،تخفيف کول ،کمول ، نهٔ پوره کول.

**ـــ کېدل** :- کمے راوستل کېدل ، تخفيف کېدل ،کمے کېدل ،کمېدل ، نهٔ پوره کېدل.

**لږونه** :- (ل + گ / ژ + ؤ + نَ )(حمص ) کمونه ، تخفيف کول ، کمے راوستنه.

**لږوونکے** :- (ل + گ / ژ + وو +ن +کے )(اس ، فا ، مذ ، ج ـ کي )کموونکے ، کمے راوستونکے.

**لږېدل** :- (ل + گې / ژې + د + ل )(مص ) کمېدل ، لږ کېدل ، کمے راتلل. کمے کول ، نهٔ پوره کېدل.

**لږېدنه** :-(ل + گې / ژې + د +ن )(حمص )کمېدنه ، کمے راتلنه ، تخفيف ، کماوخت.

**لږے** :- (ل + گے / ژے ) کمي ، کماوخت ، تخفيف ، تفريط.

**ـــ کول** :- تفريط کول ، (د افراط په مقابله کښې )کمے کول.

**لس** :- (ل + س )(اس ، عدد ) نهه او يو. پينځه او پينځه ، عشره.

**ـــ پولۍ** :- (ـــ پُو + ل + ی )(اس ، مو ) د افغانستان يوه سکه چې د لسو پولو برابر وي.

**ـــ پېسيز** :- (پې + سي + ز )(پ تر ، اس ، مذ )د پاکستان يوه سکه ، چې د لسو وړو پېسو برابره وي. د روپۍ لسمه برخه.

**لسان** :- (ل + سا + ن )(ع ، اس ، مذ ، ج ــ ونه /السنه ) ژبه ،ځبه ، (چې ويلے کېږي ).

**لساني** :- (ل + سا + نې )(ع ، صف ) لسان يعنې ژبې / ځبې ) سره تعلق لرونکے ، د ژبې متعلق.

**لسانيات** :- (ل + سا + نې + ن+ ا/ يا + ت )(ع ، اس ، جم ) د ژبو متعلق علم. ژبپوهنه.

**لس بېلا** :- (ل + س + بې + لَ )(اس ، مع ) په بلوچستان کښې يوه علاقه .چې د دارالحکومت نوم ئې لس بېله دے.

**لست** :- (ل + س + ت )(فر ، اس ، مذ ، ج ــ ونه )(و ــ لسټ ).

**لستوڼو** :- (ل + س + تو + ڼو ) د لستوڼي (جمع ) بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**په ـــ گډېدل ، چاته** :- ډېره زياته خوشحالي او مينه څرگندول .د چا په راتلو ډېره زياته خوشحالي څرگندول. ډېر زيات خاطر مدار يا خدمت کول.

**لستوڼي** :- (ل + س + تو + ڼي ) د لستوڼے جمع ده .د ,, لستوڼے ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ نغښتل** :- لستوڼي په نغښتلو بره خېژول چې لاس بربنډ شي .مجازاً : جنگ جگړې يا کوم درونډ کار ته تيارېدل.

**د ـــــ مار** :- (د ـــ ما + ر )(پ ، تر ، اس ، مـذ ، ج ـــ ان ) پـه لستوڼي کښې ساتلے شوے مار . مجازاً هغه دوست نما دښمن ، هغه سړے چې د نيکۍ په وجه تهٔ ئې خپل گڼې او هغه درسره بد وکړي.

**لستوڼے** :- (ل +س + تو + ڼے )(اس ، مذ ، ج ـــ ڼي ) د قميص کوټ وغېره هغه برخه چې لاس په کښې پټ وي. استين.

**لستوڼکے** :- (ل + س + تو + ڼ + کے )(اس ، مـذ ، ج ـــ کي ) هغه وړوکے

لستوڼې شان کوم چې نانبيان د ډوډۍ پخولو په وخت په لاس کوي.

**لسته** :- (ل + س + ت) (اس ، مو ، ج ـ تې) طرف ، غاړه ، مخه.

**لسکۍ** :- (ل + س + ک + ی) (اس ، مـو) دېلـه ، د تـاش هغـه پاڼـه چـې لـس نخښې لري. لسه.

**لسکۍ** :- (ل + س + ک + ی) (اس ، مو) يو قسم بې ګُله ګيا ده چې تار ئې نرے وي

**لسکے** :- (ل + س + کے) (اس ، صف ، مذ ، ج ـ کي) شوم ، کنجوس ، اوږ سترګے ، وږ سترګے ، حرصي ، لالچي.

**لسګون** :- (ل + س + ګو + ن) (اس ، عـدد) لـس چنده ، يو پـه لـس ، لـس ګـن ، لسيز

**لسګونو** :- (ل + س + ګو + نو) د ,, لسګونه ،، مجروري وغيره شکل دے - چې د مغيرهٔ تورو سره راځي.

لکه : په دې تيرو لسګونو کلونو کښې...

**لسګونه** :- (ل + س + ګو + نَ) (اس ، عدد) لس چنده ، يو په لس ، لسها ، ډېر ځله لس.

**لسم** :- (ل + س + م) (اس ، عدد) د نهو نه پس راتلونکے څيز يا بنيادم وغيره - (د صفت) په طور استعمالېږي. لکه : لسم جماعت.

**لسو** :- (ل + سو) (اس ، عدد) د ,, لس ،، (جمع) مجروري وغيره شکل - چې ځينو مغيرهٔ تورو سره راځي.

**ـــ ته پرس ويل** :- ډېر زيات بوډا توب ته استعاره ده - ډېر زيات بوډا ,, بودل ،، (په خولهٔ کښې غاښونه نهٔ لرلو له کبله الفاظ ئې د خولې نه خطا خطا اوځي)

**لسه** :- (ل + س) (و ـــ لسکۍ).

**لسها** :- (ل + س + ها) (اس ، عدد) ډېر ځله لس ، ډېرې دهايانې ، په لسونو (شاذ)

**لسيز** :- (ل + سي + ز) (اس ، مذ) د لوخې وبخ - د لسو روپو نوټ.

**لسي** :- (ل + سي) (اس ، مو) پى چې په کښې ډېره اوبهٔ ګډې شوې وي - د څښلو دپاره نرمولے شي - شوملې ، شلومبې - طنزاً پى چې ډېر نرم وي - لکه پئ واله ! دا پئ خو دې خالص لسي دي - په يو لغت کښې د شاتو اوبهٔ.

**لسے** :- (ل + سے) (اس ، مذ ، ج ـــ ي) سړے ، بنيادم ، نفر.

**لش** :- (ل + ش) (ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) سست ، کاهل ، بې حوصلې.

**لُش** :- (لُ + ش) (اس ، صوت) هغـه اواز چې سپي پـه چـا پسې کولـو دپاره وبښکے شي - اُوش.

**لشپاک** :- (ل + ش + پا + ک) (ف ، اس ، مـذ ، ج ـــ ونـه) هغـه غونډ کـړے تيکرے يا غونډ چپړے کاڼے چې هلکان ورسره لوبې کوي - موسى -.

**لشتائے** :- (ل + ش + تا + ئے) (و ـــ لښتے).

**لشتر** :- (ل + ش + ت + ر) (هـ ، صف ، مذ ، مـو ـــ ه) بې کـاره ، سست ، کاهل.

**لشکر** :- (ل + ش + ک + ر) (و ـــ لښکر).

**لشکري** :- (ل + ش + ک + ري) (و ـــ لښکري).

**لشکه** :- (ل + ش + ک) (اس ، مـو ، ج ـــ کې) لشـه ، د مچـۍ لـرم لشـه ـ يوبوټے چې ورسره څوک ولګي نو دغه ځاے سوے راواخلي - سـوکے ، د بـوټي د خوشې تېرهٔ اغزي (ظفر).

**لشکے** :- (ل + ش + کے) (حرف) د مقدار تورے دے - لږ شان ، لږ کوټې.

**لشکے** :- (ل + ش + کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) يو قسم ګياه ده.

**لشکي** :- (ل + ش + کي) د ,, لشکه ،، جمع ده.

**لشکي** :- (ل + ش + کي) (اس ، جم) يو قسم لشو واله بوټے ، غنم چې لشې ئې سوځاندې وي - يعني چې کوم ځاے سره ولګي نو دغه ځاے سوے راواخلي

**لشماتي** :- (ل + ش + ما + تي) (صف ، اس) نيم ګرمې اوبهٔ ، داسې اوبهٔ چې ډېرې ګرمې نهٔ وي.

**لشي** :- (ل + شي) د ,, لشه ،، جمع ده - د ,, لشه ،، بدل شکل چې د مغيرهٔ تورو سره راځي.

**بې ـــ** :- (پ تر ، صف) هغه سړے چې لشه په کښې نهٔ وي (مجازاً) بې ضرره سړے هغه سړے چې د چا په بنهٔ ؤ بدو کښې نهٔ وي - بزدله ، بې غصې سړے.

**بې ـــ کب** :- (بې ـــ ک + ب).

**بې ـــ مهے** :- (بې ـــ م + هے) هغه کب چې په کښې (نرۍ) لشې نهٔ وي.

**لښته** :- (ل + خ / ش + ت) (اس ، مـو ، ج ـــ تې) د ونې څانګـه - د ونې نه پرېکړې شوې څانګه - د لاس لرګے ، عصا ، کوټټې ، نېغ قد واله.

**لښتي** :- (ل + خ / ش + تي) دلښـتـه جمع ده - د ,, لښته ،، بدل شکل چې د مغيرهٔ تورو سره راځي.

**لښتۍ** :- (ل + خ / ش + ت + ئ) (اس مو) يو بوټے دے چې رېښې يا ډکې ئې د بد اواز نه د بچ کېدو دپاره د ماشومانو په غاړه کښې اچولے شي - دخليل مومند په علاقه دغه د سنت کړي ماشوم په پښه کښې هم اچولے شي.

**لښتۍ** :- (ل + خ/ش + ت + ی) (اس ، مـو) د غوړونـو يـو قسـم کـالے ، جُومکې ، جمکې.

**لښتۍ** :- (ل + خ + ت + ی) (اس ، مو) ګډېدونکے هلک چې د جينکو جامې ورته اغوستولے شي.

**لښتے** :- (ل + خ / ش + تے) (اس ، مـذ ، ج ـــ تي) ولـه ، د اوبـو د تېرېـدو کنستلې شوې لاړ.

**لښتے** :- (ل + خ / ش + تے) (اس ، مذ ، ج ـــ تي) شاهد ، لوبغاړے ، شنګ.

**لښکر** :- (ل + خ /ش + ک + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ي) فوځ ، د جنګ دپاره راغونډ کړي خلق ، ډېر خلق ، ډېر جمع (واحد ئې عموماً د مذکر په طور استعمالېږي - خو جمع ئې عموماً د مؤنث په طور (لښکرې) هم راځي - د نارينهٔ په نومونو کښې استعمالېږي.

**ـــ ځاے** :- (ـــ (د) زا + ئے) (و ـــ لښکر ګاه).

**ـــ کوټ** :- (ـــ کو + ټ) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) قلا چې په کښې لښکر پروت وي.

**ـــ ګاه** :- (ـــ ګا + ه) (اس ، ظر) هغه ځاے چرته چې فوځ عارضي طور سره پړاؤ کوي - کېمپ.

**لښکري** :- (ل + خ/ش + ک + ري) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) د لښکر يو سپاهي.

**لښکرې** :- (ل + خ / ش + ک + رې) (اس ، مؤنث ، ج) د لښکر جمع - د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ کول** :- لښکر کول ، لښکر سره حمله کول ، لښکر سره ورختل.

دا هم ځاے د تعجب د حېرانۍ دے

چې لښکرې په خوشحال کابهرام خان (خوشحال)

**ـــ ماتول** :- لښکرو له ماتې ورکول ، لښکرو له شکست ورکول ، لښکرې تښتول

که په څهٔ هنر د دومره توان رسېږي

چې به تهٔ کړې د مرګي لښکرې ماتې (خوشحال)

**لښکے** :- (ل + خ / ش + کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) د رګونو وهلو نشتر.

**لښکے** :- لږ شان ، لږ کوټې. (واجب دي ثابت شوې په آيت يا په حديث دي

لنبکے شک به په کښې وینه ).(اخون درویزه).
**لنبل** :- (ل + خ /ش + ل) (مص) کوچ کول ،کوچېدل ،روانېدل ،لېږدل.
**لنبلے** :- (ل + خ/ ش + لے) (اس ، مف ، ج ــ لي) بار کړے.

غه عالم چې عمل نۀ لري په مثل لکه خر دے
باندې څو کتابه لنبلي مشقت ئې بې حاصله (خوشحال)

خوشحال د ککړ ، لوند په معنې اخستے دے.

زویه که ورونه د خپل خپل کار دي
په اوښکو لنبلے ټټر د هر چا دے (خوشحال)

**لنبنه** :- (ل + خ / ش + نَ) (حمص) لېږدنه ،کوچ کونه ، کوچېدنه.بارونه.
**لنبوَل** :- (ل +خ / ش + ؤ + ل) (مص) کوچول ،لېږدول ،د یوځاے نه بل ځاے ته استول.
**لنبونه** :- (ل + خ / ښ + ؤ + نَه) (حمص) لېږدنه ،کوچ کونه.
**لنبــونے** :- (ل + خـو/ شـو + نـے) (اس ، فـا ، ج ــــ نـي) کـوچ کـوونکے ، کوچېدونکے. بارګیر ، څاروے چې بارونه وړي.
**لص** :- (لِ + صُ) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ان / لصوص) غل ، چور ، سارق.
**لطافـت** :- (لَ + طـا + ف + ت) (ع ، اس ، مـو) پـاکیزه والے ، بـاریکي ،نـرے والے ، نرمي ، مهرباني ، ملائمت ،ښائست ، نزاکت.
**لطائف** :- (ل + طا + ئي + ف) (ع ، اس ، ج) د لطیفه جمع ده. (و ــ لطیفه).
**لطف** :- (لُ + ط + ف) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) عنایت ، مهربـاني ، خوبي ، نرمي ، ملائمت ،مزه ، خوند ، لذت.
**لطفــاً** :-(لُ + طْ + ف + ن) (ع ، تـف) مهربـانۍ سـره ، نرمـۍ سـره ، د مهربانۍ په طور
**لطمه** :- (لُ+ ط + مَ) (ع ، اس ، مو ، ج ــــ مې) څپېړه ، تپېړه.
**لطیف** :- (ل + طِي + ف) (ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) باریک ، نرے ، پاکیزه ، سُتره ، مهربـان ، باریـک بیـن پـه دې معنٰی کښـې د خـداے پـاک یـو صفاتي نوم دے. د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي.
**لطیفـه** :- (ل + طي + فَ) د ,,لطیـف ،، تانیث دے .(خـج پـه ,,طي ،، بانـدې دے).
**لطیفه** :- (ل + طي + فَ) (ع ، اس ، مو ، ج ــ فې) داسې خبره چې په زړۀ ښه ولګي یا چې سړي له پرې خندا ورشي. ټوقـه ټقالـه ، د ټوقې مسـخرې خبره (خج په ,,ف ،، باندې دے.).
**ـــــ وئیل** :- د ټوقې ټقالې خبره کول ، خوندناکه خبره کول.
**لعـاب** :- (لُ + عـا + ب) (ع ، اس ، ج ــــ لعابونـه) توکـانړې ، لاړه ،د هـر څیـز ټینګ او سلېښناک رس.
**ـــــ دار** :- (ـــــ دا + ر) (عف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) لعاب واله ، لاړو والا ، سلېښ ناک مادې واله.
**لعاز** :- (ل + عـا + ز) (اس ، مذ ، ج ـــ ونـه) د رېشـخند نه ډکه خبره .داسې خبره چې د بل پرې سپکاوے کېږي.
**لعان** :- (ل + عـا + ن) (ع ، اس ، مذ ) د قاضي په مخکښې د ښځې او خاوند په یو بل باندې لعنت وئینه .دا په هغه موقع کولے شي چې خاوند په خپله ښځه د بدکارۍ تور ولګوي.
**لعبت** :- (لُ + ع + ب + ت) (ع ، اس) د لوبو څیز ، د جینکو ګوډاګۍ وغېره چې ورسره لوبې کوي.بت ، تصویر ،د شطرنج وغېره لوبه.
**ـــــ باز** :- (ـــ با + ز) (عف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ګوډئیو سره لـوبې کوونکے

دلفرازه سرفرازه عشوه سازه لعبت بازه
خورپسنده سربلنده شکرخنده لب شکره (خوشحال)

د پتلو تماشا ګیر.
**لعل** :- (ل + ع + ل) (ع ، اس ، ج ـــ لعلونـه) لال ، هر یـو سُـور رنګـے څیـز .د یوقسم سور رنګے قیمتي کانړے.یاقوت.
**ـــ اسا** :- (ـــــ ا + سا) (ف تر ، صف) د لعل په شان، سوررنګې

چــې لعــل اسـا دي په دواړه لب دې وه
چې سمن سا دے په سپین غبغب دې وه (خوشحال)

**لعلي** :- (ل + ع + لي) (صف) د لعل په شان رنګ ، سور رنګ ، (چې مصور او نقاش ئې استعمالوي.)
**لعن** :- (لَ + عْ + ن) (ع ، اس ، مذ ) لعنت.
**لعنت** :- (ل + ع + ن + ت) (ع ، اس، مذ ، ج ــــ ونه) د خداے پاک د رحمت نه لرې والے .مردودیت ، پټے منه .
**ـــــ کول** :- د چا په حقله د خداے پاک د رحمت نه د لرې والي ښېره کول. په چا لعنت (لعنه الله تعالی) وئیل.
**ـــــ لرل** :- لعنت وئیل.

خلق په شیطان باندې لعنت لعنت لرینه
چارې پــه ســرېو واړه نفس امــاره کا (خوشحال)

**ـــــ وئیل** :- (و ـــ لعنت کول).
**لعنتي** :- (ل + ع + ن + تي) (عف ، صف) هغه چې په چا لعنت شوے وي .لعین ، ملعون.
**لعوق** :- (ل + عو + ق) (ع ، اس ، جم) د داروګانو هغه قسم چې لیټې شان وي او څټلے شي.
**لعین** :- (ل + عي + ن) (ع ،صف ، مذ ، مو ــ ه) (و ـــ لعنتي).
**لغ** :- (ل + غ) هغـه زمکه چې پـه کښـې ګیاه بـوټي وغېره نۀ وي.صفا ، چې وښېنتۀ نۀ لري.

نـابـالغ لکـه عـورته
په ښوې مخ په زنه لغه (ارزاني)

**لغ** :- (ل + غ) (ف ، صف) داسې څیز چې کلک لګېدلے نۀ وي .سست . مجازاً هغه سړے چې د ګېډې سپک وي او د راز خبره پټه نشي ساتلے. هواره سخته زمکه.
**لغاز** :- (ل + غا + ز) (اس ، مذ ، مو ــ ه ، ج ـــ ي) ټوقه مذاق ، ټوقه خندا .
**لغازه** :- (اس مو ، ج ـــ زې) د ,,لعاز ،، تانیث دے.
**لغازي** :-(ل + غا + زي) (اس ، مو) رېشخند ، په ټوقو ټوقو کښې د بل سپکاوے.
**ـــــ کـول** :- چا پـورې ټـوقې ، خندا کول ، چا پـورې رېشـخند کـول ، داسې خبرې کول چې د بل پرې سپکاوے کېږي.
**لغام** :- (ل + غا + م) (اس ، مو ، ج ـــ ونه) فا : لګام ، واګې.
**لغایت** :- (ل + غا + ي + ت) (ع ، تر ، تف) تر ، تر اخره.

لکـه د ص ۱۰۱ لغایـت ۱۱۲ (اصـلاً د ,,ل ،، دپـاره تـر وغېـره) او ,,غایت،، (اخر) څخه مرکب دے).

**لغــت** :- (لُ + غ + ت) (ع ، اس ، مـذ ، ج ـــ ونـه / ات) لفـظ ، ټکـے ، ژبـه ، فرهنګ ، ډکشنري ، هغـه کتـاب چې پـه کښـې لفظونـه او د هغې معنې لیک وي.
**ـــــ تراش** :- لفظونه جوړوونکے ، د ځانه ټکي جوړوونکے.
**ـــــ دان** :- په لغت پوهه.د لفظونو د تشریح او معنو ماهر.
**ـــــ شناسي** :- (ـــــ ش + نـا + سي) (عـف ، تـر ، اس ، مـو) فلالـوجي ، د لفظونو د پوهې علم ، د ژبې مهارت.
**ـــــ نویس** :- (ـــ ن + وي + س) (عف ، تر ،اس ، صف،مذ ،ج ــ ان مو ـــ ه) د الفاظو د معنو کتاب لیکونکے. (انګ ـــ لېکسیکوګرافر).

**لغته** :- (ل + غ + ت) (اس ، مو ، ج ـــ تې) لته ، په پښه / بښه په ګذار ورکول.
(ځینې محاورې د "لته"، تر لاندې وګورئ).

**ـــ خوړل** :- په لته وهلې کېدل ، د لتې ګذار خوړل. نقصان موندل ، ټوکر موندل

**ـــ ورکول** :- په لته وهل ، لته ورکول.

**په ـــ وهل** :- په لته وهل. بې قدري کول ، نۀ قبلول.

**خپل قسمت په ـــ وهل** :- داسې څیز یا کار د قبلولو نه انکار کول ، چې په کښې د هغه ډېره فائده وي.

**لغړ** :- (ل + غ + ړ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) بربنډ ، برمنډ ، لڅ ، برهنه ، خالص ، بېخي نادار ، سپېرۀ.

**ـــ اوښ** :- (ـــ او + خ / ش) مجازاً : بې حیا سړے.

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب).

**ـــ تیا** :- (ـــ ت + یا) (اس (۱) مذ ، (۲) مو) لغړوالے ، لُڅ توب ، برهنګي ، خالص والے.

**ـــ زنے** :- (ـــ ز + نے) (پ تر ، صف) هغه چې زنه ئې لغړه وي. بې ږیرې. کوسه.

**لغړدل** :- (ل + غ + ړ + د + ل) (و ـــ نغزل).

**لغړکي** :- (ل + غ + ړ + کي) (اس ، جم) د اوچ کړي (لاندي) ګډانو هډوکي چې غوښه پرې نۀ وي.

**لغړندوکے** :- (ل + غ + ړ + ن + دو + کے) (اس ، فا ، ج ـــ کي) رغړېدونکے ، تولېدونکے.

**لغړندوکے** :- (ل + غ + ړ + ن + دو + کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) ګړګړې ، هغه فلزي یا د لرګي تراشلي شوې اله چې پړے پرې ګرځي ، چرخي.

**لغړنول** :- (ل + غ + ړ + ن + ؤ + ل) (مص) خیرنول.

**لغړنېدل** :- (ل + غ + ړ + نې + د + ل) (مص) خیرنېدل.

**لغړول** :- (ل + غ + ړ + ؤ + ل) (مص) رغړول ، تولول. په خاورو کښې رغړول ، (په خاورو وغېره کښې) اړولو را اړولو سره په خاورو وغېره ککړ کول. مجازاً خوار خسته کول ، خوارول ، خراب تراب کول.

**لغړول** :- (ل + غ + ړ + ؤ + ل) (مص) بربنډول ، لڅول ، برهنه کول.

**لغړوونے** :- (ل + غ + ړ + وو + نے) (اس ، فا ، ج ـــ نې) رغړوونے ، تولوونے ، رغړوونکے.

**لغړه** :- (ل + غ + ړَ) (صف ، مو ، ج ـــ ړې) بربنډه ، لُڅه ، برهنه ، خالصه ، سوچه.

**ـــ پښتو** :- (ـــ پ + خ / ش + تو) (پ تر ، اس ، مع) (افغانستان) خالصه پښتو ، سوچه پښتو.

**لغړېدل** :- (ل + غ + ړې + د + ل) (مص) بربنډېدل ، لڅ کېدل ، بر هنه کېدل ، حیا پرده نۀ پاتې کېدل ، د چا د عیب یا خراب حالت څرګندېدل.

**لغړېدل** :- (ل + غ + ړې + د + ل) (مص) رغړېدل ، تولېدل. په خاورو وغېره کښې اوړېدل را اوړېدل. خوارېدل ، خوار خسته کېدل. په ډېرو ځایونو ملکونو کښې بې کومې فائدې یا ګټې ګرځېدل.

**لغړېدنه** :- (لُ + غ + ړې + د + نَ) (حمص) رغړېدنه. تولیدنه. په ملک ملک ، ځاے په ځاے ، ناکامیابه ، ګرځیدنه. خوارېدنه.

**لغړېدونکے** :- (ل + غ + ړې + دو + ن + کے) (اس ، فا ، ج ـــ کي) بربنډېدونکے ، لڅېدونکے ، برهنه کېدونکے. تولیدونکے ، ځان په خاورو ککړ کوونکے.

**لغړېدۀ** :- (لُ + غ + ړې + دۀ) (و ـــ لُغړېدنه).

**لغړے** :- (ل + غ + ړے) (صف ، مذ ، ج ـــ ړي) د "لغړ"، تصغیر دے. مجازاً بې حیا او بې شرمه سړے ، بد لحاظه سړے.

**لغز** :- (ل + غ + ز) (و ـــ لغزش).

**لغزش** :- (ل + غ + ز + ش) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ښوئېدنه ، خطا ، غلطي ، تېروتنه ، سهو.

**لغزېدل** :- (ل + غ + زې + د + ل) (مص) ښوئیدل ، لغزش خوړل.

**لغزی** :- (ل + غ + ز + ی) (اس ، مو) یو قسم ګیاه ده چې په زمکه نښتې خوره شوې وي او بند بند وي.

**لغښت** :- (ل + غ + خ / ش + ت) (حمص) رغړېدنه ، تولېدنه.

**لغښتل** :- (ل + غ + خ / ش + ت + ل) (مص) (و ـــ لغړېدل).

**لغښتے** :- (ل + غ + خ / ش + تے) (اس مف) (و ـــ لُغړېدل).

**لغکه** :- (ل + غ + کَ) (اس ، مو ، ج. کې) یو بوټے ، اوربشکۍ.

**لغکی** :- (ل + غ + ک + ی) (اس ، مو) هغه غنم چې لوے سرونکے او تېرې لشې لري

**لغم** :- (ل + غ + م) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) کنډر ، نقب.

**ـــ وهل** :- کنډر کول ، نقب کول. مجازاً د چا خلاف سازش کول یا منصوبه تیارول.

**لغم** :- (ل + غ + م) (ت اس ، مذ) درنګ ، کان.

**ـــ الوزول** :- درنګ الوزول ، درنګ د بم په ذریعه الوزول.

**لغمان** :- (ل + غ + ما + ن) (اس ، مع) په افغانستان کښې د یوې علاقې یا صوبې نوم.

**لغمکه** :- (ل + غ + م + ک) (اس ، مو ، ج ـــ کې) دوه دوه غاښې لرګې چې د سخې یا کتاکتې د پوزې نه بره ترلے کېږي چې د مور پی اونۀ څښلے شي.

**لغو** :- (ل + غ + و) (ع ، صف) بې هوده ، نامعقول. بکواس ، لایعني ، بېکار.

**ـــ کار** :- (ـــ کا + ر) (عپ تر. اس ، مذ ، ج ـــ ونه) خوشې کار ، بې فائدې کار ، عبث فعل.

**لغوړن** :- (ل + غ + ؤ + ړ + ن) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) ګنده ، خیرن پیرن او غوړ.

**ـــ کول** :- ګنده کول ، خیرنول ، خیره غوړه درپورې کول.

**ـــ کېدل** :- ګنده کېدل ، خیرنېدل ، خیرن پیرن کېدل ، غوړ او خیري لګېدل.

**لغوړنه** :- (ل + غ + ؤ + ړ + ن) (اس ، مو ، ج ـــ نې) د لغوړن تانیث دے.

**لغړے** :- (ل + غو + ړے) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) کرېچۍ ، کړڅو ، هر کاره ، د کلي وال خلقو خاورینه هرکاره.

**لغونه** :- (ل + غو + نَ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) طوطي.

د وحدت د باغ مرغونه
تور کارغۀ شو شین لغونه (ارزاني ، زړه پانګه)

**لغونے** :- (ل + غو + نے) (اس ، مذ ، ج ـــ نې) د خاورو کټوې.

**لغوه** :- (ل + غ + وَ) (صف ، مو ، ج ـــ وې) (و ـــ لغو).

**لغوي** :- (لُ + غ + وي) (ع ، صف) لغت سره متعلق. لکه : لغوي معنې.

**ـــ پانګه** :- (ـــ پا + ن + ګَ) (عپ ، تر ، اس ، مو ، ج ـــ ګې) د الفاظو ذخیره.

**لغویات** :- (ل + غ + و + یا + ت) (ع ، اس ، ج) لغو خبرې ، بېهوده خبرې.

**لغویت** :- (ل + غ + وي + ي + ت) (ع ، اس ، مذ) بیهودګي ، خوشې توب.

**لفافه** :- (ل / لي + فا + فَ) (اس ، مو ، ج ـــ فې) هغه کاغذ چې په کښې څۀ څیز نغښتے شي. خصوصاً د کاغذ کڅوړه چې په کښې خط یا نور څیزونه نغښتے شي. د ډاک لفافه.

**لفټ** :- (ل + ف + ټ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) پورته کونه ، اخستنه. سورلي ، د بجلۍ پوړۍ.

**ــــــ اخستل** :- په لاره روان موټر وغېره کښې په سوال سورېدل.

**ــــــ ورکول** :- په ګاډي (یا موټر سائېکل وغېره) کښې لاروي ځان سره سورول، اهمیت ورکول، اهم ګڼل، توجه ورکول.

**لفټېن** :- (ل + ف + ټې + ن) (انګ، اس، مذ، ج ــ ان) د فوځ یوه عهده، (و ــ لفټینېنټ).

**لفظ** :- (ل + ف + ظ) (ع، اس، مذ، ج ـــ ونه / الفاظ) د یو ژبې یوه کلمه، یو ټکے د حرفونو (تورو) هغه مجموعه چې څهٔ معنې ورکوي.قول، عهد، پېنتو کښې د ف په ځاے واو استعمالېږي یعني لوظ.

**ــــــ به لفظ** :- (ــــــ ب، ل + ف + ظ) (ف تر، تف) یو یو لفظ، ټکي په ټکي، پوره په پوره.

**لفظاً** :- (ل + ف + ظ + ن) (ع، تف) د لفظ یا لفظونو په لحاظ سره.په لفظونو کښې.

**لفنګ** :- (ل + ف + ن + ګ) (و ـــ لپنګ).

**لقا** :- (ل + قا) (ع، اس، مو) لېدنه، دیدار، دیدن، صورت، مخ.د لاحقې په طور هم استعمالېږي.لکه: همه لقا.

**لقاح** :- (ل + قا + ح) (ع، اس) ګېډه کېدل، حمل اخستل.

**لقب** :- (ل + ق + ب) (ع، اس، مذ، ج ـــ ونه / القاب) د اصل نوم نه علاوه هغه نوم چې د کوم څهٔ صفت یا د ذم معنې ورکوي.

**ــــــ نهٔ "بودل" په چا باندې** :- عیب نهٔ "بودل" نقص یا کمے نهٔ "بودل".

په ښائست کښې هېڅ لقب درباندې نشته
کــه د څــهٔ خــو د عــاشق نمنځنه کړې (خوشحال)

**ــــــ جوړېدل** :- عیب نهٔ لیدلے کېدل، اعتراض نهٔ کېدل.

ښې سپینې ډکې لیچې ګرد ورغوي اوږدې ګوتې
هر ځاے ته چې ئې ګورې هېڅ لقب پرې نهٔ جوړېږي (خوشحال)

**لقح** :- (ل + ق + ح) (و ـــ لقاح).

**لقطه** :- (لُ + ق + طَ) (ع، اس، مو، ج ـــ طې) پرېوتے څیز، هغه څیز چې په لاره کښې پرېوتے وموندلے شي.

**لقلق** :- (ل + ق + لَ + ق) (ع، اس، مذ) لګ لګ، د ډینګانو یو قسم دے.(ف: لګ لګ) اوږدې اوږدې پښې او اوږده پلنه مښوکه لري.کبان او ماران خوري.

**لقمان** :- (لُ + ق + ما + ن) (اس، مع) یو ډېر هوښیار او د حکمت خاوند سړے چې ذکر ئې په قرآن مجید کښې راغلے دے.ددې لقمان په حقله مختلفې نظریې دي.ځینې وائي چې دے د باعور زوے وهٔ او د حضرت ایوب علیه السلام په زمانه کښې وهٔ.ځینې وائي چې د بني اسرائیلو قاضي وهٔ.ځینې وائي چې د اصله حبشي وهٔ شام کښې ئې د علم زده کړه کړې وه.د فلسطین په رمله نومې ښهر کښې ښخ دے.ځینې وائي چې د چا شتهٔ من مریے وهٔ.... او داسې نور.عموماً ورته "لقمان حکیم" وئیلے شي.ځینې ئې د یونان اوسېدونکے ګڼي.

که هر څو ښائسته ئې نهٔ یوسف ئې د کنعان
که هر څو ډېر هوښیار ئې نه مخې ئې دلقمان (خوشحال)

**لقوه** :- (ل + ق + و) (ع، اس، مو) د ګوزن یا فالج یو قسم دے چې اثر ئې په مخ کېږي.او په کښې خولهٔ یو طرف ته کږه شي.

**لقــیط** :- (ل + قــي + ط) (ع، اس، مــذ) هغــه ماشــوم چــې پــه لاره کښــې غورځېدلے وموندلے شي او واخستے شي.

**لقیه** :- (لُ + قْ + يَ) (ع، اس) ملاقات.

**لک** :- (ل + ک) (صف، مذ، مو ـــ ه) نېغ او کلک ولاړ، ښخ او ولاړ.

**ــــــ څک** :- (ـــــ (ت) س + ک) (صف، مو، ـــ ه، ـــ ه) بالکل نېغ او ښخ، غوږونه بوځ کړې.

**ــــــ څک کېدل** :- نېغ او ښخ کېدل، مجازاً نېغ اودرېدل، ډېر زیات متوجه کېدل.

**ــــــ لېونے** :- (ـــــ لې + و + نے) (صف، مذ، ج ـــ نې) ډېر ناقلاره او ناقلاره، مضطرب پرېشانه.

**لک** :- (ل + ک) بېوقوف، احمق، بېهوده کلام، بکواس.داغ (د جامې یا د میوې) زړه شلیدلې جامه، پک، ګنجے.

**ــــــ دار** :- (ـــــ دا + ر) (ف تر، صف، مذ، مو ـــ ه) داغ واله، داغي (مېوه، داغ واله کپړه.ټکي ټکي، داغونو واله.

**لک** :- (ل + ک) (اس، عد) سل زره، لاک (هـ ـــ لاکهـ).

**ــــــ پتي** :- (ـــــ پ + تي) (هـ، پ، تر، صف) هغه سړے چې دولت ئې د لک یا لکونو روپو نه زیات شوے وي. (هـ ـــ لاکهـ پتي).

**ــــــ پتي کېدل** :- د لکونو روپو خاوند کېدل، ډېر زیات مالداره کېدل.

**لک** :- (لُ + ک) (ع، اس، مذ) رنګ، روغن، د لاګ رنګ.

**لک** :- (لُ + ک) (هـ، اس، مذ) لنبه، لمبه، شُعله.

**لکا** :- (ل + کا).

**لکاؤ** :- (ل + کا + ؤ) د لک د جمعې په طور د زیات شمېر د پاره راځي.لکه: په لکاؤ روپۍ (هـ ـــ لاکهوں).

**په ـــ** :- (پ ـــ) په لکونو، په لکونو لکونو، ډېر زیات، بې شماره.

**لکات** :- (ل + کا + ت) (ف، صف) بد، خراب شوے (څیز).

**لکاته** :- (ل + کا + تَ) د ,,لکات،، تانیث دے.بدچلنده ښځه، فاحشه.

**لکچر** :- (ل + ک + چ + ر) (انګ، اس، مذ، ج ـــ ونه) بیان، وینا، تقریر، بیانیه، د کالج او د یونیورسټۍ د استاد هغه سبقي تقریر کوم چې هغه په جماعت کښې خپلو شاګردانو ته کوي.درسي تقریر.

**لکچرار** :- (ل + ک + چ + را + ر) (انګ، اس، مذ، ج ـــ ان) د کالج یا د یونیورسټۍ استاد، څوک چې د تقریر په ذریعه درس ورکوي.

**لکد** :- (ل + ک + د) (ف، اس، مذ، ج ـ ونه) لته، لغته، ټوکر.

**لکړ** :- (ل + ک + ړ) (اس، جم) ټانګر، د جوارو ټانټیو پس خورده ټاټېه، کړیه (کاکړ).

**لکړه** :- (ل + ک + ړَ) (اس، مو، ج ـــ ړې) لرګے، د لاس لرګے، عصا، نرے او اوږد لرګے، هغه نرۍ ونه چې په ځاے ولاړه وچه شوې وي.

**لکړه** :- (ل + ک + ړ) (اس، مذ) شش کباب، د پړپوس نه جوړ شوي کباب، لړمانښ.

**لکړې** :- (ل + ک + ړې) (اس، مذ، ج ـــ ړي) نرے نروچکے مانده اوږد او کمزورے سړے.

**لکړۍ** :- (ل + ک + ړ + ی) (اس، مو) د "لکړے" تانیث.د ځینو کلو نوم.

**لکښو** :- (ل + ک + خو / شو) (اس، مذ) هوسۍ، غرئیزه هوسۍ.

عشق لکه زمرے پرې تېښېږي یو په یو
عقــل په کروهونو له ماتښتې لکښو (اخون ګدا)

**لک لک** :- (ل + ک + ل + ک) (و ـــ لق لق).

**لکلمې** :- (ل + ک + ل + مې) (اس، مذ، ج ـــ مي) د ملا د تیر اخرینۍ حصه، هغه هډوکے چې د کونې شاته بهر راوتے وي (د حیواناتو لکۍ له دغه ځایه شورو کېږي).

**لکه لمې** :- (ل + ک + ل + مې) (و ـــ لکلمې).

**لکمه** :- (ل + ک / کو + م) (پ تر، حرف) چې د له او د کمه یا کومه مرکب دے.او د استفهام کلمه ده چې د ځاے او مقام د پوښتنې د پاره راځي.د کوم ځاے نه، له کومه، د چرته نه.

**لکنت** :- (لُ + کْ + نَ + ت) (ع ، اس ، مذ ) د ژبې / جبې نښتنه ، ترټرې توب.
**لکوټي** :-(ل + کو + ټي) (حرف) د مقدار کلمه ده.چې د لږ کوټي ، مخفف ده. لږ شان ، لږ قدر.
**لکوک** :- (ل + کو + ک) (صف ، مذ ) هغه اوبن چې په تلو کښې ئې دواړه پښې (ښپې) په خپله کښې جنګېږي او زخمي شي.
**لکول** :- (ل + ک + ؤ + ل) (مص) نبغ او کلک اودرول.نصب کول ، لکه خېمه ، اله تناسل نبغول او کلکول.
**لکونه** :- (ل + ک + ؤ +ن ) (حمص) نبغونه او کلکونه ، ښخونه، نصب کونه ( لکه خېمه ) اله تناسل نبغونه.
**لکه** :- (ل + کَ) (حرف) په مثال ، مانند ، په شان.
**لکه** :- (ل + کَ) (صف ، مو ، ج ـــ کې) نبغه ولاړه ، ښخه ولاړه .په زمکه کښې ښخه او نبغه ولاړه.

چې خېمه ئې د سېلاب په مخ شوه لکه
دحباب تماشه ګوره تر دمکه (رحمان بابا)

**لکه** :- (ل + کَ) د "لک" يو قسم جمع.چې عموماً عدد اسمونو سره راځي. لکه شپږ لکه روپۍ.
**لکه** :- (ل + کَ) داغ ، سوځېدلے ځاے.مجازاً داغ ، عېب ، تور.
**لکه دار** :- (ل + کَ + دا +ر) (صف ، مذ ،مو ـــ ه) عېب جن ، معيوب ، داغدار
**لکها** :- (ل + کا) (و ـــ لکا ، لکاؤ).
**لکهاؤ** :- (ل + کا + ؤ) (هـ ، اس عدد ) لکونو ، لکاؤ.
لکه: په لکهاؤ روپۍ ئې ولګولې.
**لکۍ** :- (ل + ک + ی) (ا س ، مو ، ج ـــ لکيانې) د ځناورو د بدن هغه برخه چې اوږدۀ اوږدۀ وېښتۀ لري.او ځناور پرې مچان وغېره شړي. (ف : ار ، دُم).د کوم کار يا څيز لږه شان پاتې برخه. بازاري ـ کُنه ، کونه ، مقعد ، د يو مشهور کلي نوم.
**ـــ اېستل** :- مجازاً بې خونده يا بې ډوله کول، سپکول.
**ـــ ترل چا پورې** :- الزام لګول ، تهمت لګول ، بدنامول.
**ـــ خوزول ، چاټه** :- خوشامنده کول ، چاپلوسي کول.
**ـــ ښورول** :- (و ـــ لکۍ خوزول).
**ـــ وال** :-(ـــ وا + ل) (پ تر ، اس ، مو ـــ ه) (و ـــ لکي ور) . د لکۍ کلي اوسېدونکے
**ـــ وريورې ترل** :- چا پورې دروغ خبره ترل.سپکول.
**ـــ ور** :- (ـــ و+ ر) (پ تر ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) لکۍ لرونکے ، لکۍ واله ، طنزاً شمله

لکي وره دستار په سر کړه!
ســر وهــه پــه مصلا ! (خوشحال)

**ـــ ورکول** :- (بازاري) کُنه ورکول ، بدفعلي کول.
**ـــ ئې پاتې / پاته ده** :- (جمله) د کار ډېره برخه شوې ده.بس اخري حصه ئې پاتې ده.لږ شان کار پاتې دے.متل دے چې اتي تېر دے خو لکۍ ئې پاتې ده
**دخر ـــ** :- (د + خ + ر ـــ) (پ تر ، اس) مجازاً کم عقل ، ضدي.
**دسپي ـــ** :- (د + س + پي ـــ) (پ تر و اس) مجازاً : عادت نۀ بدلوونکے ، ضدي په خپله خبره ټينګ اوسېدونکے.
**لکي** :- (ل + کي) (صف) هغه سړے چې لکونه روپۍ لري.لک پتي ، د لکو نه د زياتو روپو خاوند.لکي ښۀ دے که پتي ؟ (متل).
**لکې** :- (ل + کې) (صف ، مو ، ج) لک شوې ، نبغې ولاړې.

**ـــ پښې** :- (ـــ پ + شې).
**ـــ ښپې** :- (ـــ خ + پې) (صف يا مف) د غورزېدلو داسې حالت چې د چا بدن په زمکه لګېدلے وي او پښې ئې اسمان ته نبغې ولاړې وي. لکه : لکې ښپې په زمکه راوغورزېد.
**ـــ ښانګې** :- (ـــ خا / شا + ن +ګې) (و ـــ لکې پښې / خپې).
**لکېدل** :- (ل + کې + د +ل) (مص) نبغ کلک اودرېدل ، نصب کېدل .(لکه خېمه، نېزه) د اله تناسل نبغ اودرېدل.
**لکېدنه** :- (ل +کې +د +نَ) (حمص) نبغېدنه.کلک ، اودرېدنه، نصب کېدنه.
**لکېور** :- (ل + کې ، ؤ + ر) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) د لکۍ ور بدل شکل دے.لکۍ لرونکے.
**ـــ ستورے** :- (ـــ س + تو + رے) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ري) هغه ستورے چې وروستو ئې پرقېدونکے لکۍ شان ښکاري ، دُمدار ستورے.
**لګ** :- (ل + ګ) (و ـــ لږ) (نور الفاظ د ,, لږ ،، تر لاندې وګورئ).
**لګ** :- (ل + ګ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) لګښت ، خرڅ.
**لګام** :- (ل + ګا + م) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) واګه ، داس واګه .
**لګاؤ** :- (ل + ګا + و) (اس ، مذ ) خرڅ ، لګښت ، سخت ګُذار ،زخم.
**لګاوو** :-(ل + ګا + وو) (اس ، مذ ) خرچ کوونکے ، دوه کسان جنګوونکے ، فتنه ګر
**لګاوول** :- (ل + ګا + و + ؤ + ل) (مص) ضرب رسول ، ګُذار يا ګذارونه ورکول ، وهل (هـ ـــ لګانا).
**لګاوونه** :- (ل + ګا + و+ ؤ + نَ) (مص) ضرب رسونه ، ګذار ورکونه.وهنه
**لګاوه** :- (ل + ګا + وۀ) (اس ، مذ ) لګونه ،خرڅ کونه.
**لګاوه** :- ( ل + ګا + و ) (اس ، مو ، ج ـــ وې) بد چلنه ښځه ، فاحشه.
**لګاوېدل** :- (ل + ګا + وې + د + ل) (مص) وهل خوړل ، ګذارونه خوړل .په سوکونو ، لتو يا په لرګي وهلے کېدل.
**لګاوېدۀ** :- (ل + ګا + وې + دۀ) (حمص) په لتو ، سوکونو يا په لرګو وغېره وهلے کېدنه.
**لګت** :- (ل + ګ + ت) (اس ، مذ ) لګښت ، خرڅ.
**لګټ** :- (ل + ګ + ټ) (اس ، مذ ) د غوزانو (اکوړو) لوبه.چې هر يو هلک يو څو غوزان په يوه دائره کښې کښېږدي.بيا ئې هر يو په خپل ټيک دغه غوزان ددغې دائرې (پانۍ) نه اوباسي.
**لګد** :- (ل + ګ + د ) (و ـــ لګښت).
**لګډ** :- (ل + ګ + ډ ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د سېلاب د اوبو د تېرېدو لار ، اوچ خوړ ، الګډ.
**لګړ** :- (ل + ګ + ړ ) (اس ،مذ ، ج ـــ ونه ) يو ښکاري مارغۀ.

لګړ که هر څو له بازه تېز پر دے
په هره چاره کښې د باز نفر دے (خوشحال)

**لګړ** :- (ل + ګ + ړ ) (صف ) هغه زمکه چې دنهر يا سيند نه اوبۀ کېږي .(په مقابله کښې د کارېز ) لګر .(ف.رود بار).
**لګړګ** :- (ل + ګ + ړ + ګ) (اس، مذ ) لړزه ، رږ .هغه لړزه کومه چې د ضعيفۍ له کبله پيدا شي.
**لګړه** :- (ل + ګ + ړه) (اس، مو ، ج.ړې) د" لګړ" تانيث دے.
**لګم** :- (ل + ګ + م ) (فعل) د لګېدل مصدرنه د حال واحد متکلم صيغه ، لګوم
**لګن** :- (ل + ګ + ن ) (اس ، مذ ) لګښت ، خرڅ.
**ـــ کول** :- خرڅ کول ، لګښت کول.
**لګن** :- (ل + ګَ + ن ) (هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د ارتې خولې لوے لوښے ،

دوره ، د لاس وينځلو لوښے ، لاس ، وينځونکے ـ

**لګني**:- (ل + ګ + ني)(اس ، مذ) ګنجے سر ، هغه ګنجے چې وېښتهٔ نهٔ لري او سُور وي ـ پک ، لېنډا ـ

**لګو** :- (ل + ګو)(فعل) دلګېدل مصدر نه د حال (جمع متکلم) صيغه ـ

**لګور** :- (ل + ګو + ر)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) يو غرئيز بوټے چې سور ګل کوي او يو تره شان هم کوي ـ

**لګول** :- (ل + ګو + و + ل)(مص) کمے راوستل ، کمول ـ

**لګول** :- (ل + ګ + ؤ + ل)(مص) خرڅ کول ، پيسې ټکې خرچ کول ـ صرف کول ـ بلول ، لکه اور لګول ، تيلے لګول ـ ملازم کول ، نوکر کول ، مقررول ـ کرل ـ لکه بوټي لګول ـ يو ځاے کول ـ نښلول ـ

**اور ــــ** :- اور بله ؤل ـ فساد پورته کول ـ جنګ جګړه جوړول ـ بې خرته خرڅ کول ، د سيلمې خرڅ کول ـ

ننيګالي د ننګ دپاره

په هر څهٔ لګوي اور (خوشحال)

**پته ــــ** :- (پ + ت ــــ) سراغ لګول ، حال معلومول ، ځاے ځائيګے معلومول ـ

**درک ــــ** :- (د + ر + ک ــــ)(و ــــ پته لګول) ـ

**ډېره ــ** :- ډېره اچول ، ډېره نيول ، مستقل طورسره استوګن کېدل ـ

**زور ــــ** :- پوره کوښښ کول ، دخپل پوره زور قوت نه کار اخستل ـ

**لګون** :- (ل + ګو + ن)(اس ، مذ) لګښت ، خرڅ ، مصرف ـ

**لګوڼے** :- (ل + ګو + ڼے)(اس ، مذ ، ج ــــ ڼي) يو بوټے چې سور ، پوپک ، (چڼاسه) کوي ـ

**لګوونے** :- (ل + ګو + وو + نے)(اس ، مد ، ج ــــ ني) هغه څيز چې اور پرې لګولے شي ـ

**لګه** :- (ل + ګَ)(صف ، مو) خالص ، سوچه ـ

**لګه بوګه** :- (ل + ګ + بو + ګَ)(صف ، مو ، ج ــ ې ــــ ې) لنډے بوچے ـ

**لګه درګه** :- (ل + ګ + د + ر + ګَ)(پ تر ، اس ، مؤ ، ج ــ ې ــ ې) هلله ګُوله ، افري تفري ، شورزوږ ، لکه : تهٔ شرمېږې نه چې په کور کښې دې دا لګه درګه جوړ کړې ده ـ

**لګئ** :- (ل + ګ + ئ)(فعل) د لګېدل مصدر څخه / نه د حال (حاضر جمع) صيغه ـ

**ــــ کېدل** :- شورو (شروع) کول ، اغاز کول ، پېل کول ـ

**لګے** :- (ل + ګے)(فعل) د لګېدل مصدر څخه / نه د حال واحد حاضر صيغه ـ

**لګيا** :- (ل + ګ + يا)(تف) مصروف ، مشغول ، لکه : هغه په کار کښې لګيا دے ـ

**ــــ اوسه** :- کوه بکواس ! زهٔ د دې خبرو پروا نهٔ کوم ـ

**ــــ اوسېدل** :- په کار وغېره کښې مسلسل مصروف اوسېدل ، کار وغېره جاري ساتل ـ مسلسل بد رد وئيل ـ

**ــ کول** :- په کار کښې مصروف کول يا مشغول کول ، په کار اړمول ـ

**ــــ کېدل** :- په کار کښې مصروف کېدل ، په کار اړمېدل ، په کار شورو (شروع) کېدل ، بد رد وئيل ، رټل ترټل ـ

**لګېدل** :- (ل + ګې + د + ل)(مص) په ګولۍ کاڼي وغېره ګزار خوړل ـ جنګېدل ، يو ځاے کېدل ، بلېدل ، (په ښار کښې اور لګېدلے دے) خرڅ کېدل ، حمل اخيستل ، ګېډه کېدل ، بلاربه کېدل ـ سمون خوړل ، موافقت لرل ـ لکه : زما هغه سره نهٔ لګي ، نوکر کېدل ، ملازم کېدل ـ خوښېدل ، د طبيعت سره موافق "بودل" لکه : زما دا ټوپک لګي ، جنګ جګړه کول ، دښمني کول

**تود باد ــــ** :- معمولي شان تکليف ور رسېدل ـ

**نظر ــــ** :- د چا په سترګو کښې د بدنظر اثر بودل ـ د نظره کېدل ـ

**نهٔ ــــ** :- موافقت نهٔ کېدل ـ خوښ نهٔ "بودل" ـ لکه : دا شربت زمانهٔ لګي ـ يعني زما خوښ نهٔ دے ـ

**لګېدهٔ** :- (ل + ګې + دهٔ)(حمص) د ,, لګېدل ،، مصدر څخه حاصل مصدر ، (و ــــ د لګېدل مختلفې معنې) ـ

**لګېدلې** :- (ل+ګے+د+لے] حامله ـ

**لګېدلے** :- (ل + ګے + د + لے)(اس ، مف ، ج ــ لي) جخت ، پېوست ـ

**لل** :- (ل + ل)(مص) وئيل ـ

**شاهدي ــــ** :- (شا + هـ + دي ــــ)(و ــــ ګواهي لل) ـ

**ګواهي ــــ** :- (ګَ + وا + هي ــــ) شاهدي کول ، ګواهي ورکول ـ

ظاهري ګونه د زړهٔ په حال ګواهي لي

که هيڅوک نهٔ وي خبر له اندرونه (خوشحال)

**لل** :- (ل + ل)(صف ، مذ ، مو ــ ه) ګونګے ، چې خبرې نشي کولے ـ

د وفاجفا سودا په خپل اختيار کا

د خوبانو په دربار کښې دے دلال لل (علي خان)

**ــــ کېدل** :- ګونګے کېدل ، مجازاً ځان ګونګے کول ، خاموشه کېدل ، چپ کېدل ، جواب نهٔ ورکول ـ

**ــــ ګل** :- (ــــ ګ + ل)(صف ، مذ ، مو ــــ ه ــــ ه) حق حېران ، حېران او ششدر ، وازه خولهٔ ، داسې حېران چې خبره ئې د خولې نه نهٔ ووزي ـ حواس بافته ـ

**ــــ ګل کېدل** :- ډېر زيات حېران کېدل ـ داسې حېرانېدل چې د خولې نه ئې خبره قدرې نهٔ ووزي ـ حواس بافته کېدل ـ

**لل** :- (لَ + لْ)(اس ، مذ) زور ، قوت ـ

**لل** :- (لَ + لْ)(اس، مذ) وعده ، قول ، لوظ ، عهد ، پېمان ـ

**للل** :- (لَ + لَ + لْ)(مص) (و ــــ لل) ـ

**لله** :- (لِ + لْ + لا(ه))(ع ، تر ، تف) د خداے دپاره ـ

**لله الحمد** :- (ل + ل + لا + ه + ل + ح + م + د)(ع + جمله) ټول تعريف خداے پاک لره دے ـ د خداے پاک شکر دے ـ

**للت کور** :- (لَ + لَ + ت + کو + ر)(اس ، مع) د رمي خېلو ځانګه ده ـ رمي خېل (کډې کور ، حليم زئ) مهمند دي ـ

**للمه** :- (ل + ل + مَ)(اس ، مو ، ج ــــ مې) هغه زمکه چې په باران اوبېږي ـ باراني زمکه ـ

**للمي**:- (ل + ل + مي)(صف) للمې زمکې سره متعلق ـ لکه : للمي غنم ـ

د للمې سرې په مخ کښې وي اب چېرې

هغه خلق چې بې اب وي خو بې اب وي (رحمان بابا)

**للمۍ** :- (ل + ل + م + ئ)(و ــــ للمه) ـ

**للو** :- (ل + لو)(اس ، صوت) هغه لفظ چې د ماشومانو په ,, الاهو ،، کښې وئيلے کېږي ـ لولو ـ

**ــــ کول** :- (دماشومانو په ژبه / جبه) اودهٔ کول ، لولو کول ـ

**ــــ کېدل**:- (دماشومانو په ژبه / جبه) اودهٔ کېدل ، لولو کېدل ـ

**ــــ للو**:- (ــــ ل + لو)(اس ، صوت) هغه الفاظ چې د ماشوم په الاهو کښې وئيلے کېږي ـ

**ــــ وئيل** :- ماشوم ته الاهو وئيل ـ

**للي ــــ** :- (ل + لي ــــ) هغه کلمات چې د ماشومانو په الاهو کښې

استعمالېږي.

**للو** :- (ل + لُو) (صف ، مذ ، ج ــــ ګان) ساده ، کم عقل ، ناپوهه ، نادان.

**ـــــ پنجو** :- (ــــــ پ+ن + جو) (پ تر ، صف) د ادنیٰ درجې خلق ، پلانے ډینګلے ، اېره غېره.

**للو پتو** :- (ل + لو + پ + تو) (اس مو) چل ول ، انې بانې، خوشامنده.په ګرانه ګُذاره.

**ـــــ کول** :- چل ول کول ،انه بانه کول ، خوشامنده کول. په چل ول ګذاره کول ، په سخته ګذاره کول ، په ګرانه وخت تېرول.دګذارې شے پخول.

**للول** :- (ل + ل + ؤ + ل) (مص) لل کول ، ګونګے کول ، ژبه / جبه بندول.ډېر زيات حېرانه کول ، چې د حېرت له کبله د خبرو نه پاتې شي.

**للون** :- (ل + لو + ن) (اس ، مذ ، ج ــــــ ونه) د نوي تيو کېدلي فصل نه وانبۀ مانبۀ ايستل.

**ـــــ کول** :- د وړوکي فصل د پټي نه فالتو وانبۀ مانبۀ ايستل.

**للونول** :- (ل + لو + ن + ؤ + ل) (مص) په پټي کښې للون کول ، د پټي فصل د فالتو وبنو مبنو نه پاکول.

**للونکے** :- (ل + لـو + ن + کے) (اس، فـا ، ج ــــــ کـي) ويـونکے ، ګـواهي ورکوونکے ، شاهدي کوونکے.

**للېدل** :- (ل + لې + د + ل) (مص) ورو ورو حرکت کول.ورو ورو خوځېدل.

که طالب ئې پسې وللېږه
ځــان وحــق وته ولېږه (ارزاني)

**للېدل** :- (ل + لې + د+ل) (مص) لل کېدل ، ګونګے کېدل ، ژبه بند بېدل.ډېر زيات حېرانېدل ، د ډېرې حېرانۍ له کبله د خولې نه خبره نۀ ختـل .حـواس باخته کېدل ، هوش حواس بائلل.

**للې** :- (ل + ل + ی) (اس ، صوت) د للو هم معنیٰ لفظ دے.د ماشومانو په الا هو کښې استعمالېږي.

**ـــــ کول** :- (و ــــ للو کېدل).

**ـــــ کېدل** :- (و ــــ للو کېدل).

**للې** :- (ل + ل + ی) (اس ، مو) ساده ،کم عقله ، ناپوهه ، بې وقوفه.

**لم**:- (ل + م) (اس ، مذ ، ج ــــــ ونه) د ګډ ،ګډې د لکۍ په ځائې غټ دنبال ، چې وازدې / شلې نه ډک وي.طنزاً غټ کناټي.

**ـــــ پوست** :- (ــــــ پو + س + ت) (اس ، تر ، مذ ، ج ــــ ونه) د ګډ د لم څرمن.

**ـــــ جونړے**:- (ــــ جو + ن + ړے).

**ـــــ جنړے** :- (جُ + ن + ړے) د ګډ / ګډې د لکۍ په ځائے چې کوم غټ عضو زورند وي.او د وازدې نه ډک وي.

**ـــــ چړ** :- (ــــ چ + ر) (پ ،تر ، مذ ،مو ــــ ه) هغه ځناور يا څاروے چې لکۍ ترې پرېکړے شوې وي.

**ـــــ څوکے** :- (ــــ (ت) سو + کے) (و ــــ لم جونړے).

**ـــــ کـړے** :- (ــــ ک+ ړے) (پ تـر ، اس، مـذ ،ج ــــ ړي) لکـه لمـے ، د بنيادم هغه هډوکے چرته چې د ځناورو لکۍ وي.

**ـــــ ګوړے** :- (ــــ ګو + ړے) (پ تر ،اس، مذ ، ج ـ ړي) لم ، د ګډ لم .د ,,لم ،، تصغير ، وړوکے لم.

**په ـــــ تېروتل** :- په غټو څربو کناټوتېروتل .چې ګنې دا غټ پټ سړے به همداسې تورزن او مېړنے وي.

**لم** :- (ل + م) (فعل) د ,,لـل ،، مصدر څخه / نه د فعل حال (واحد متکلم) صيغه لولم ، وايم.

**لم** :- (لَ+م) (ف ، صف) سست ، ناراست ، کاهل ، څملاستنه .(لېټ سره يو ځاے راځي).

**ـــــ لېټ کېدل** :- اوږد اوږد پرېوتل ، څملاستل ، سملاستل.

**لم** :- (لِ + م) (ع ، اس ، مذ) علت ، سبب ، دوکه ، فرېب.

**لم** :- (لَ + م) (ف) لار ، ليارہ (ظفر).

**لمار** :- (ل + ما + ر) (اس ،مذ ،ج ــ ونه) د کوژدنې د خوږو (مټيايي) رومال.

**لماړے** :- (ل + مـا + ړے) (اس ، مـذ ، ج ــ ړي) جـامې مبنـلې شـوې ، شـلېدلې جامې.

**لماړے** :- (ل + ما + ړے) (اس ، مذ) د شلېدلي ځاے دوباره سرسري يا غټ غټ ګنډنـه .نمـاړے .(پښتـو کښې داسې ,,ل ،، او,,ن،، اکثـره سـره بدلېږي).

**ـــــ کول** :- شلېدلے ځاے دوباره سرسري غټ غټ ګنډل.نماړے کول.

**لماست** :- (ل +مـا+ س + ت) (صـف ، مـذ ، مـو ــــ ه) د څملاسـتو پـه حالـت کښې پروت، ملاست.

**لماستل** :- (ل +مـا+ س + ت + ل) (مـص) سملاسـتل ، څملاسـتل ، اوږد اوږد پرېوتل ، نماستل.

**لمانځل** :- (ل + ما+ن + (د) ز+ل) (مص) نمانځل ،عزت ورکول ، احترام کول. صفت کول ، ستائنه کول ، ثنا کول ، پالل ، پالنه کول.

**لمانځل** :- (ل +مـا+ ن (د) ز + ل) (مـص) پـاکول ،پـاکيزه کـول ، اراسـته کـول ، بنېسته کول ، لکه په عصري تعليم ئې ځان ولمانځې!

**لمانځلے** :- (ل +ما +ن (د) ز + لے) (اس ، مف ، ج ــــ لي) عزت ورکړے شـوے ، محترم ، ستائيلے شوے.

**لمانځنه** :- (ل +مـا + ن+ (د) ز + نَ) (حمص) عزت کونه ، احترام کونه .ستائنه ، پالنه.

**ـــــ کول ، دچا**:- تعريف کول ، صفت کول ، عزت کول ، احترام کول.

**لمـانځونکے** :- (ل +مـا +ن +(د) زو+ن +کـے) (اس فا ،مـذ ،ج ــ کـي) عـزت ورکوونکے، احترام کوونکے ، ستائنه کوونکے ، صفت کوونکے ، پالنه کوونکے.

**لمانځه** :- (ل + ما + ن + (د) ز) (اس ، مذ) د لمونځ بدل شکل .نمانځه ، نمونځ.

**لمانځه** :- (ل +ما+ ن + (د) ز) (و ــــ لمانځنه).

**لمانځي** :- (ل + ما +ن + (د) زي) (صف) پاک ، صفا ، سوتره.

**ـــــ کول** :- پاکول ، صفا کول ، سوتره کول.

**ـــــ کېدل** :- پاکېدل ،صفاکېدل ،سوتره کېدل.

**لمـانځے** :- (ل + مـا + ن + (د) زے) (اس ، مـذ ، ج ــــــ ځـي) دمېچنـې يـا د جرندې وغېره محور يا لټ، تبرک.

**لمانه** :- (ل + ما + نَ) (حرف) د ,له + ما+ ما ،،مخفف تـورے دے .زمـا څخه ، زما نه.

**لمبا** :- (ل +م+ با) (اس ،مو) غُسل ، د بدن وينځنه.

**لمباوه** :- (ل + م + با+ ؤ) (اس ،مذ) لمبونه ، غسل ورکونه.

**لمبـر** :- (ل + م + ب +ر) (انګ، اس، مـذ ، ج ـــ ونـه / رې) د ,,نمبـر ،، بـدل شکل دے.نمبر ، درجه ، وار ، پاںئې، شمار ، شمېر ، منصب.

**ـــــ کول**:- د شمېر عدد ليکل (په څۀ) نشان لګول.

**ـــــ کېدل** :- وارکېدل ،پاںئې کېدل ،د شمېر عدد ليکلے کېدل.

**ـــــ وهل ، په چا**:- د شمېر عدد يا بل کوم نښان لګول.

**رو ـــــ** :- د اولې درجې د ټولو نه د غوره درجې.د ټولو نه اعلیٰ يا غوره.

**لمبر** :- (ل + م + ب + ر) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) د کاربز سُورے.نمبر ، عدد.

**لمبر دار** :- (و ــــــ نمبردار).

**لمبرې** :- (ل + م + ب + رې) (اس ، ج ) نمبرونه ، عددونه.
**ــــ اخيستل** :-
**ــــ اغيستل** :- په امتحان كښې په خپله پرچه باندې نمبرې حاصلول.
**ــــ كول** :- په امتحان وغيره كښې نمبرې حاصلول. په خپلو نمبرو كښې زياتې راوستل ، نمبرې زياتول.
**لمبري** :- (ل + م + ب + ري) (صف ، مذ ) هغه چې نمبر وركړے شوے وي. عموماً د بدمعاش په حقله وئيلے شي چې د پوليس په ريكارډ كښې ئې نوم وغيره ليكلے شوے وي . چې فلانے (۲) لمبري (نمبري) بدمعاش دے .نمبر (۲) بدمعاش دے.
**لمبړ** :- (لُ + م + بَ + ړ) (اس ، مذ ، ج ــ ان) د لومبړې مذكر.
**لمبړ** :- (لُ + م + بَ + ړ) (صف ، مذ ، مو ــ ه) د اوږد قد واله .لوړ (سړے) اوږد او كم عقل سړے.
**لمبړۍ** :- (ل + م + ب + ړ + ى) (و ــ لمړۍ).
**لمبړے** :- (ل + م + ب + ړے) (و ــ لمړے).
**لمبل** :- (ل + م + ب + ل) (مص) غسل كول ،لامبل ،لانبل.
**لمبلځے** :- (ل + م + ب + ل(د) زے) (اس ،ظر) د لامبلو ځاے ، غسل خانه.
**لمبلو** :- (ل + م + ب + لو) د ,, لمبل ،، بـدل شكل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.
**د ــ تالاؤ** :- (د ــ ت + لا + ؤ).
**د ــ تالاب** :- (د ــ تا + لا + ب) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) هغه تالاؤ (تالاب) چې په كښې خلق لامبي.
**لمبو** :- (ل + م + بو) (و ــ لامبو).
**لمبو** :- (ل + م + بو) (و ــ لمبړ).
**لمبور** :- (ل + م + بو + ر) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) د كارېز يو سر . دكارېز نوے كنستے ځاے . د كارېز سورے چې اوبۀ په كښې بهېږي.
**ــ چي** :- (ــ چي) (اس ، مذ ، ج ــ ان) هغه سړے چې كارېزونه كني .د كارېز د كنستلو پوهان.
**لمبول** :- (ل + م + ب + ؤ + ل) (مص) غُسل وركول ، بدن وينځل (دچا) لامبل.
**په وينو كښې ــ** :- ډېر زخمي كول ، چې په خپلو وينو ئې بدن ككړ شي.
**لمبوونے** :- (ل + م + ب + وو + نے) (اس ، مذ ، ج ــ ني) لمبولو واله ، د سړو لمبولو واله ، غسل وركوونكے ، غسال.
**لمبه** :- (ل + م + بَ) (اس ، مو ، ج ــ بې) شعله ، لنبه ، د بدن د گرمۍ يا د پيدائشي نقس په وجه د بدن سرۀ تاكي.
**ــ راوتل** :- په بدن سرۀ سرۀ تاكي راپيدا كېدل .
**ــ كول** :- شعله پيدا كول ، غرغنډه كول .
**ــ كېدل** :- شعله پورته كېدل .سخت غصه كېدل ، په غصه قهر كښې سور كېدل .
**سره ــ كېدل** :- بې كچه ډېر غصه كېدل ، له قهره تك سُور كېدل . لويه سره شعله پيدا كېدل.
**لمبه** :- (ل + م + ب) (اس ، مو ، ج ــ بې) يوه مرغۍ ده چې د بنو ځوكې ئې سرې او زيړې دي.
**لمبې** :- (ل + م + بې) د ,, لمبه ،، جمعده . د ,, لمبه ،، بدل شكل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.
**ــ پورته كېدل** :- لوړې شعلې پيدا كېدل.
**په زړۀ ــ بلېدل** :- (و ــ د زړۀ نه لمبې ختل).
**د زړۀ نه ــ ختل** :- زړۀ سوځېدل ، مجازاً زړۀ ته ډېر زيات تاؤ (دُوك) رسېدل
**لمبېدل** :- (ل + م + بې + د + ل) (مص) غسل كول ،بدن وينځل .لنبېدل.

**لمبېدنه** :- (ل + م + بې +د +نَ) (حمص) غسل كونه ، د بدن وينځنه.
**لمبېدۀ** :- (ل + م + بې + د) (حمص) (و ــ لمبېدنه).
**لمټک** :- (ل + م + ټَ + ک) (صف ، مذ) هغه سړے چې سستو او بې كاره وي.
**لمځنډے** :- (ل + م(د) ز + ن + ډے) (و ــ لكه لمے).
**لم چټ** :- (ل + م + چ + ټ) (اس ، مذ ، مو ، ج ــ ان) ټپوس ، مشهور مردار خور مارغۀ . گنجې.

يوه لوے كافر ته دغه كار نصيحت واخستۀ روان شو
لمچټانو رې غوټې كړې سترے ځان پورې حېران شو
(ملا اختر قلمي نسخه ، زړه پانگه)

**لمچه** :- (ل + م + چَ) (اس ، مو ، ج ــ چې) د خشاك د لرگو يو گېډے.
**لمځوكے** :- (ل + م (ت) سُو + كے) (و ــ لم گډے).
**لمځه** :- (ل + م + (ت) سَ) (اس ، مو ، ج ــ لمځې) گنجې ، كرگس.

الـــه داد لكه لمځے په جيفه گـــرځي
د مرداري بوئي ئې ځي له دواړه تخرگه (خوشحال)

**لمځے** :- (ل + م + (ت) ځے) (اس ، مذ ، ج ــ ځي) گنجې مشهور مردار خور مارغۀ . ځنگلي كارغۀ.

زاغ ټپوس لمځے چې ورسره شي
د هغــۀ تتاج بوده مسخـره شي (خوشحال)

**لمځے** :- (ل + م + (ت) سے) (اس ، مذ ، ج ــ ځي) نمده.
**لمحه** :- (ل + م + حَ) (ع ، اس ، مو ، ج ــ حې / ات) لحظه ، گړۍ ، لږ شان وخت
**لمدبل** :- (ل + م + د + ب + ل) (اس ، مذ) بُخار ، ړاس ، لوندوالے.
**لمدان** :- (ل + م + دا + ن) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) د يو بوټي (ونې) نوم چې سرې دانې نيسي. پاڼې ئې د بلوط د ونې د پاڼو نه وړې وي.
**لمدول** :- (ل + م +د + ؤ + ل) (مص) د ,, لوندول ،، بدل شكل دے .په اوبو وغيره لوندول ، تر كول. (نور الفاظ د ,,لوند ،، تر لاندې وگورئ).
**لمده** :- (ل + م +دَ) (صف ، مو ، ج ــ دې) په اوبو تره ، تر ،نمجنه ، خوشته.
**لمده بل** :- (ل + م + د + ب + ل) (اس ، مذ) انگولے ، پخكړے ، سالنړ.
**لمدېدل** :- (ل + م + دې + د + ل) (مص) د ,, لوندېدل ،، بدل شكل دے . په اوبو تر كېدل ، نمجن كېدل . (نور الفاظ هم د ,, لوند ،، تر لاندې وگورئ).
**لمډے** :- (ل + م + ډے) (اس ، مذ ، ج ــ ډي) (و ــ لم جونډے) .د لم دپاسه هډوكے.
**لمر** :- (ل + م + ر) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) نمر ، نور . (ع ــ شمس) هغه ځاے چې د لمر (نور . نمر) رڼا او تاؤ پرې لگي ، غارمه . (ار ــ دهوپ).
**ــ پرېواتۀ** :- (ــ پ + رې + وا + ت) (اس ظر) د نمر ډوبېدۀ .مغرب ،د نمر د پرېوتلو طرف.
**ــ پرېوتل** :- (و ــ لمر ډوبېدل).
**ــ په زيړې دے** :- (جمله) نمر / نور په ډوبېدو دے.
**ــ په گوته پټول** :- داسې ښكاره حقيقت د پټولو كوښښ كول ،چې هغه پټېدے نشي اوښ په بډه كول.
**ــ په يوه نېزه كېدل** :- (و ــ لمر يو نېزه راښكته كېدل).
**ــ تندره** :- (ــ ت + ن + د + ر) (اس ، مو) د نمر گرهن ، چې سپوږمۍ د زمكې او د نمر په مينځ كښې راشي نو نمر ئې شاته پټ شي. كسوف.
**ــ ته اچول** :- نمر / نور ته غوړول .د اوچېدو د پاره جامې وغيره په غرمو كښېښودل.
**ــ ټک** :- (ــ ټ + ک) (پ تر ، اس ، مذ) نيمه ورځ ، غرمه ، ټكنه غرمه ،

استوا

**ـــــ ځرک** :- (ـــــ(ت) س + ر + ک)(پ تر ، اس ظر) د نمر د ځړیکې وهلو وخت ، د نمر د ختلو وخت.

**ـــــ ځرک وهل** :- د نمر / نور ځړیکه وهل ، د نمر / لمر / نور ځړیکه ، پلوشه، راښکاره کېدل.

**ـــــ ځرکې** :- (ـــ(ت) س + ر + کې)(اس ، مذ ، ج ـــ کې) هغه ځاے چې د نمر ځړیکې پرې لګي پتاؤ . هغه کوټه یا عمارت چې مخ ئې د نمر طرف ته وي.

**ـــــ ځرګے** :- (ـــ(ت) س + ر + ګے)(اس ،مذ ، ج ـــ کي) د مارانو یو قسم چې سپین وي .دا مار د مارانو بادشاه ګڼلے شي .ځینې وائي چې دا پیرے دے.ځان چې یو ځل مار کړي نو بیا هم دغسې مار پاتې شي.

**ـــ ځریکه** :- (ـــــ(ت) س + ري + ک).

**ـــ ځړیکه** :- (ـــ(ت) س + ړي +کَ)(پ تر ، اس ، مو ، ج ـ کې) د نمرځړیکه ، شعاع دنمر.

**ـــــ ځیره کول** :- (و ـــــ لمر ځرک وهل).

**ـــــ ختۀ** :- (ـــ خا تۀ) (اس ظر) د نمر / نور ختنه .د نمر / نور دختلو طرف ، مشرق.

**ـــ ختل** :- نور/ نمر طلوع کېدل ، د سحر په وخت د لمر / نمر / نور راښکاره کېدل.

**ـــــ ختیځ** :- (ـــــ خ + تي + ز)(اس ، ظر) د نمر د ختلو طرف واله ، مشرقي لکه : لمر ختیځ ملکونه.

**ـــــ ډوبېدل** :- د ورځ په ختمېدو ، د لمر ، نور، نمر په اُفق کښې غېبېدل.

**ـــــ ګلے** :- (ـــــ ګُ + لے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ لي) مشهور ګل ، نمر پرست ،کاپرګل (اُر ـــ سورج مکهي).

**ـــ لرونکے** :- (ـــل + رو +ن + کے)(پ تر، اس ، فا ، مذ ، ج ـ کي) هغه ځاے چې نمر لري.هغه ځاے چې نمر پرې لګي ، نمر ته ویر ځاے.

**ـــ لوېدل** :- (ـــل +وې+د+ل)د نمر،نور ډوبېدل،دنمر پرې وتل.

**ـــــ لوېدۀ** :- (ـــــل + وې + دۀ)(پ تر ، اس ، ظر) د نمر لوېدنه ، د نمر پرېوتنه.د نمر ډوبېدنه.د نمر د ډوبېدو طرف ، مغرب ، لمر پرېواتۀ.

**ـــــ مخے** :- (ـــــم + خے)(پ تر ، صف ، مذ ،ج ـــ خي) دنمر / نور په شان مخ لرونکے. مجازاً ډېر ښکلے ، ښائسته.مشهور ګل ، نمر پرست.

**ـــــ یونیزه راښکته کېدل** :- مجازاً ډېره سخته ګرمي کېدل، ګرمي ډېره زیاتېدل.

**تر ـــــ ښکاره** :- (ت + ر ـــــ خ / ش+ کا + ر)(پ تر ، صف) دنمر / نور نه زیات ښکاره، بالکل ښکاره ، ډېر واضح.

**زیړے ـــــ** :- (ز + ي + ړے ـــــ) ډوبېدونکے نمر ، چې هغه وخت ئې د رڼا تېزي کمه او زیړه شان شي.

**سور ـــــ** :- (سو + ر ـــــ)(پ تر ، اس ، مذ) تېز نمر / لمر / نور ، د لمر (نور ، نمر) سخته تاؤ (خصوصاً د اوړي په موسم کښې) سرۀ غارمۀ.

**لمرنے** :-(ل + م + ر + نے)(صف ، مذ ) نمر / نور سره تعلق لرونکے،شمسي لکه : لمرنے کال ، شمسي کال.

**لمرے** :- (ل + م + رے)(صف) هغه څیز چې په نور / نمر کښې اوچ کړے شوے وي.په نور / نمر اوچ کړے یا اوچ شوے.

**لمریز** :- (ل + م + ري + ز)(و ـــــ لمړنے).

**لمړ** :- (ل + م + ړ)(اس ، مع) د کاکړو یو قبیله ده . ددې ځانګې دادي : بندړزئي او عبدالله زئ.

**لمړ** :-(ل + م + ړ)(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه)د دوه ؤ غرونو په مینځ کښې لویه کنده.

لمړنے نعمت د علم د ښۀ خلق د دے

دا نعمت په دواړه کونه دے راحت (خوشحال)

**لمړزیز** :- (ل + م + ړَ + زي + ز)(اس ، عدد) اول زېږېدلے ، نوے زېږېدلے ،اولنے ، سابق.

**لمړنۍ** :- (ل + م + ړ + ن + ۍ)(اس ، عد / صف ، مو) اولنۍ ، وړاندیني ، اولینه.

**ـــــ زده کړه** :- (ـــز + د + ک + ړ)(پ تر ،اس ، مو ـــ ج ـ کړې) اولنۍ زده کړه ، اولنے تعلیم ، ابتدائي تعلیم.

**ـــــ پلا** :- (ـــــ پ + لا) اول ځل ، اول وار.

**لمړنے** :- (ل + م + ړ + نے)(اس ، عدد ،صف ، مذ ، ج ـــ ني) اولنے ، اولین

**لمړۍ** :- (ل + م + ړ + ۍ)(اس ، مو) نوړۍ ،نمړۍ ،نواله ، ګوله.

**لُمړۍ** :- (لُ + مْ + ړ + ۍ)(صف ، مذ) اوله ، اولنۍ ، وړومبنۍ.

**ـــــ بازي** :- (ـــــ با + زي)(پ تر ، اس ، مو) اولنۍ لوبه.وړومبنے داؤ.

چې لیدلے ئې د عشق قمار خانه وي

په لمړۍ بازي به یار ته دل و دین ړدي (خوشحال)

**ـــــ خور** :- (ـــــ خو + ر)(پ، تر ، اس،مو) د ربیع الاول میاشت ، اوله خور ، ددولسم میاشت.

**ـــــ شومه** :- (ـــــ شو + مَ)(پ ،تر،اس،ظ) د شپې اوله برخه ،شومه قلاره.

**لمړي** :- (لُ + م + ړي) د ,, لمړے ،، جمع ده . د ,, لمړے ،،بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**د ـــــ سره** :- (د ـــ س +ر) داول سر نه / څخه، د ابتدا نه. د شورو (شروع) نه / څخه

**لمړے** :- (لُ + م + ړے)(اس، عدد ، صف و مذ، ج ـــ ړي) اولنے ، اول ، یکم ، لکه : لمړے تاریخ.

**لمس** :- (ل + م + س)(ع ،اس، مذ ، ج ـــ ونه) یو څیز لـه ګوتې وروړنه.مس کونه. په پنځو حواسي قوتونو کښې یو قوت.

**لمس** :- (ل + م + س)(و ـــــ لمسه).

**لمسول** :- (ل + م + س + ؤ + ل)(مص) کوم (بد) کار تـه اماده کول ، ترغیب ورکول.راپورته کول ، تحریک ورکول ، انګېښت کول.

**لمسون** :-(ل + م + سو + ن)(اس، مذ ، ج ـــ ونه) ترغیب ، تحریک ، پارونه ، اماده کونه ، انګېښت.

لکه مس چې په سرو زرو کښې ورګډ شي

پـه دلبـرو کښې اثـر کا لمسون هسې (علي خان)

**ـــــ کول** :- (و ـــــ لمسول).

**لمسونک** :- (ل + م + سُو + ن+ ک)(و ـــــ لمسوونکے).

**لمسونکه** :- (ل + م+سو + ن +کَ) د ,, لمسونک ،، تانیث دے.

**لمسوونکے** :- (ل + م +س +وو+ ن +کے)(اس ،فا ،مذ ، ج ـ کي) اماده کوونکے ، پارونکے ، ترغیب یا تحریک ورکوونکے ، انګېښت کوونکے.

**لمسوونے** :- (ل + م + س + وو+ نے)(و ـــــ لمسوونکے).

**لمسه** :- (ل + م + سَ)(اس ، مـو ، ج ـــــــ سې) ترغیب ، تحریک ، انګېښت.

**ـــــ کول** :- (و ـــــ لمسول).

**دچاپه ـــــ** :- د چا په تحریک ، د چا په ترغیب د چا پـه تېر ایستونکو خبرو، د چا په انګېښت.

**لمسۍ** :- (ل + م + س + ۍ) د ,, لمسے ،، تانیث دے.نوسۍ ، نمسۍ.

**لمسے** :- (ل + م + سے)(اس، مذ ، ج ـــ سي / ان) نمسے ، نوسے ، د زوئې زوے ، د لور زوے.

**لمسے** :- (ل + م + سے)(و ـــــ لمځے) لمسیانې :- (ل + م + س + یا + نې)(اس

، مو ، ج ) د „لمسی ،، جمع ده ـ نمسی ، نوسی ـ

**لمسېدل** :- (ل + م + سې + د + ل) (مص) پـه ترغیب کښـې راتلـل ، د چـا د تحریک اثر کېدل ، په انګېښت کښې راتلل ـ

**لمسېدۀ** :- (ل + م + سې + دۀ) (حمص) پـه لمسـه کښـې راتلنـه ، پـه انګېښـت کښې راتلنه ، د ترغیب یا د تحریک نه متاثره کېدنه ـ

**لمعـه** :- (ل + م + عَ) (ع ، اس ، مـو ، جــعـې / ات) د رڼـا ځریکـه ، وړانګـه ، یـو پړق ـ

**لمغړی** :- (ل + م + غ + ړ + ی) (اس ، مو) د ګډ لم ، دم غوزک ـ

**لمغـړی** :- (ل + م + غ + ړ + ی) (اس ، مـو ، ج) منـت زاري ، جـزع و فـزع ، فریاد ، زاري ، واوېلا ـ

**ـــــ کول** :- فریاد زاري کول ،جزع و فزع کول ، واوېلا کول ـ

**لمغړے** :- (ل + م + غ + ړے) (صف ، اس ، مذ ، جـــړي) فریبي ،دوکه مـار ، چل ولے ، خوشامندګرے ـ

**لمغوټـه** :- (ل + م + غُ + ټَ) (پ تر ، صف) لـم غوټـه کـړے ـ مجازاً: لاس تـړلے ، بندیوان ـ

**ـــ اېستل / اباسل** :- مخې سره ،زبردستي اباسـل ، فـوراً ، پـه زور ایسـتل یـا خـارج کول ـ

**ـــــ راوستل** :- لـم تـړلے راوسـتل ، کنایـه : لاس تـړلے او فـوراً راوسـتل ـ بغېـر د ډېل نه په جبر سره راوستل ـ

**ـــــ سپارۀ** :- کنایتاً جنګي او توریالي سوارۀ (لښکر) ـ

**لمکـه** :- (لُ + م + کَ) (اس ، مـو ، جـــکې) د „لومـه ،، تصـغیر دے ـ وړه لومه ، لومه ،دام ـ

**ـــــ کښېښـودل ، چـا تـه** :- د چـا د نښـلولو دپـاره لومـه کښېښـودل ، چـا تـه دام خوروَل

**لم لېټ** :- (ل + م + لې + ټ) (مف) انه بانه ،حیلې بانې ، چل ول ، په چل ول ـ

**ـــــ کول** :- انې بانې کول ، په چل ول ، دوکه داکه ، وخت اړول ، پـه کـار کښـې بانې کول ـ

**لم لېټ** :- (ل + م + لې + ټ) (مف) اوږد اوږد پرېوتل ، ځملاستل ـ

**لمن** :- (ل + م + ن) (اس ، مـو ، جـــنې) دامـن ، جـولی ، ځـولی ، د قمیص وړاندینی ، لاندې برخه ـ

**ـــــ پورتـه کـول** :- مجازاً : حیـا اخېسـتل ، بـې عزتـه کـول ،مجازاً : خپـل راز ښکاره کول ، خپله لمن پورته کول ، خپل ځان بربنډول ـ

**ـــــ تـه ځـان اچـول** :- د چـا لمـن نیـول ، د چـا حمایـت او مرسـتې تـه خپـل ځـان سپارل ـ

ما دے ستا لمن ته اچولے داخپـــل ځـــان دے
ستادے زما نه دے که دانا دے که نادان دے (رحمان بابا)

**ـــــ ټولول د چانه** :-

**ـــــ غونډول د چانه** :-

**ـــــ نغښتل ، نغاړل د چانه** :- د چـا نـه ځـان بـچ کـول ، تعلـق نـۀ جـوړول ، تعلـق شلول ـ

**ـــــ ځیرول / ځیرې کول ،دچا** :- د پېغلې جینـی لمـن شـلول ، دا پـه ځینـو قبیلـو کښې یو رسم دے ـ چې د جینی مور او پلار په هېڅ ډول جینی چا زلمې ته نۀ ورکوي ـ نو بیا دغه زلمے کوښښ کوي چې لاس ئې بر شي او ددغې پېغلې د لمن لړه شان برخه وشلوي ـ ددې مطلب دا وي چې دا جینی زما شوه ـ بل څوک به ئې نۀ کوي ـ دا جینی یا خو همېشه بې وادۀ پاتې شي یـا به هم دغه زلمې ته ودېږي ـ او که بل څوک زلمے ئې وغواړي یا ئې کوژده کوي نو بیا دغې اولنې زلمي سره ئې سخته دښمنې پېرې ووزي ـ اکثره پـه کښې ډېرې وینې هم توئېږي شي ـ

**ـــــ خورول ، چاته** :- سـوال کـول ، درخواسـت کـول ، پـه عـاجزۍ سـره غوښـتنه کول

**ـــــ غونډول / ټولول** :- (و ـــــ لمن نغښتل) ـ

**ـــــ نغښتل/نغاړل** :- ځان بچ کول ، ځان د چا نه لرې ساتل ،تعلق نۀ ساتل ـ

**ـــــ نیول ، دچا** :- (و ـــــ لمن خورول ، چا ته) ـ

**ـــــ نیول ، دچا** :- (و ـــــ لمن نیول ، چاته) ـ د چا زوروَر ، ولـې بـزرګ سـړي لمـن نیـول ، د هغـه پـه سرپرستی یـا مرسـته کښـې راتلـل ـ عـاجزۍ سـره معافي غوښتل ، بخښنه غوښتل ـ

**ـــــ وهل ، اور** :- د چا د جنګ اور له باد ورکول ـ جنګ جګړه زیاتول ـ

**لمنځ** :- (ل + م + ن (د) ز) (اس ، مذ ، جـــونه) نمونځ ، مونځ ـ

**لمنځ** :- (ل + م + ن + (د) ز) (اس ، مذ ، جـــونه) احترام ، عزت ، ستائنه ـ

**لمنځل** :- (ل + م + ن + (د) ز + ل) (و ـــــ لمانځل) ـ

**لمنځنه** :- (ل + م + ن + (د) ز+نَ) (حمص) احترام ، عزت ، ستائنه ـ

**لمنځه** :- (ل + م + ن + (د) زَ) (اس ، مـو ، جـــځې) د یـوې غرئیـزې ونـې نـوم دے ـ اوبښـته ـ (فـــ اوچـه) هغـه لرګـې چـې د کـور سـامان دروازې ، الماری وغېره ترې جوړولے شي ـ

**لمنګی** :- (ل + م + ن + ګ + ی) (اس ، مـو) د چکـن دوزۍ یـو قسـم ، د چکـن یو قسم کار ـ

**لمور** :- (ل + م + ؤ + ر) (صف ،مذ ،مو ـ ه) هغه ګډه وغېره چې „لم ،، لري ـ یا چې لم ئې لوے وي ـ کناټور سړے (مذاقاً) ـ

**لمونځ** :- (ل + مو + ن (د) ز) (اس ، مذ ، جـــونه) نماز ،مونځ ـ

**ـــــ ګذار** :- (ـــ ګُ / ګو + زا + ر) (پ تر ، صف ، مذ ، مـو ــ ه) نمونځ (نماز) باقاعده کوونکے ـ

**لم یزل** :- (ل + م + ي + زَ + ل) (ع تر ، صف) هغه چې زوال نۀ لري ـ تل تر تله پـه خپل حال پاتې کېدونکے ـ د خدا ے پاک یو صفاتي نوم دے ـ

**لمېسل** :- (ل + مې + س + ل) (مص) پـه لیـک کښـې راوسـتل ، لیکـل ، تسـوید کول ، مسوده تیارول ـ

**لمېسلے** :- (ل + مې + س + لے) (اس ، مف ، ج ، لي) لیکلے شـوے ، پـه تحریـر کښې راغلے ، تسوید شوے ـ مسوده ـ

**لمېسنه** :- (ل + مې + س + ن) (حمص) پـه لیـک کښـې راوسـتنه ـ لیکنـه ، تسوید کونه ـ مسوده جوړونه ـ

**لمېسونکے** :- (ل + مې + سو + ن + کے) (اس ، فا ، جـــکي) پـه لیـک کښـې راوستونکے ، تسوید کوونکے ، لیکونکے ـ

**لنبرۀ** :- (ل + ن + بَ + ر) (اس ، مو) بغېر د فرش زمکه ـ

**لنبول** :- (ل + م + ب + ؤ + ل) (مص) (و ـــــ لمبول) ـ

**لنبه** :- (ل + م +بَ) (اس ، مو ، جـــبې) شعله ، لمبه ـ

**لنبېدل** :- (ل + م + بې + د + ل) (مص) (و ـــــ لمبېدل) ـ

**لن ترانې** :- (ل + ن + ت + را + نې) (ع ، جملـه) د قرآن پـاک یـوه جملـه ده چـې معنٰی ئې ده „تۀ ما نشې لیدے ،، حضرت موسٰی علیه السلام د خدا ے پاک د دیدن خواست کړے وۀ ـ نو خدا ے پاک ورله جواب ورکړ چې تـۀ مـا نشې لیدے ـ شاعرانو دا جمله په شعرونو کښې ډېره استعمال کړې ده خو معنې ئې بدلې دي ـ یعنې د ځان ستائنه یا ډوزې ویشـتلو پـه موقـع وئیلې شي د یو کار اهلیت نۀ لرل یا د انکاري جواب په معنٰی کښې ـ

چې موسٰی وتـــه جواب لن ترانې وو
څۀ عجب جلوه لیدله شي په دا کښې (خوشحال)

**لنځي** :- (ل +ن + (د) زي) (اس ، جم) ژړا / جړا فریاد ،منت زاري ـ

**ـــــ كول** :- ژړا / جړا فرياد كول ،منت زاري كول.

**لند** :- (لُ+نْ+د) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) لوند ، تر ، خوشت.

**ـــــ والی** :- (ـــــ وا +لی)(اس ، مذ ،ج ــــ لي) لوند والی، نمجنوالی،نمي.

**لند بل** :- (ل+ن+د +ب+ل)(اس ، مذ) بخار ، بړاس.

**لندول** :- (لُ/لَ+ن+د +وٙ+ل)(مص) لوندول ، تر كول ، خشتول ، مجازاً: تسله وركول ، (ظفر).

**لنده** :- (لَ/لُ+ن+دَ)(صف ، مو ، ج ــــ دي) تره ،نمجنه،خوشته ،لونده.

**ـــــ خيشته** :- (ـــــ خي+ش+تَ)(و ـــــ لونده خوشته).

**ـــــ مېوه** :- (ـــــ مې+وَ)(پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ ې) هغه مېوه چې اوبهٔ لري.خو وچولې نشي.(د اوچې مېوې په مقابله كښې) تازه مېوه.

**ـــــ هوا** :- (ـــــ هـ+وا)(پ تر ، اس ، مو) نمجنه هوا.

**لنده** :- (ل+ن+دَ)(اس، مو،ج ــ دې) لينده ،كمان ، غلېل.

**لنده بل** :- (ل+ن+دَ+بَ+ل)(اس ، مذ) لوند ، تر،نمجن.مجازاً: انګولی ، پخكړے ، سالنې.

**دهوا ـــــ** :- (د+هـ+وا ـــــ)(پ تر ، اس ، مذ) د هوا نمي.

**لندهور** :- (ل+ن+دَ+هُو+ر)(اس ، مع) په اسرائيلي قصو كښې يو بې كچه ډېر اوږد سړے.مجازاً: اوږد سړے ، لوړدنګ سړے.

**لندی** :- (ل+ن+دَ+ی)(و ـــ ليندی).

**لندے** :- (لَ+ن+دے)(اس ، مذ ، ج ـــــ دي) هغه نهر چې د لوے سيند نه رابېل كړے شوے وي.

**لندې** :- (ل+ن+دې)(و ـــ لوندې).

**ـــــ خټې** :- (ـــــ خَ+ټې)(پ تر ، اس ، جم) لوندې خټې ، خاوره چې لونده شوې وي خو لاسمې خټې شوې نهٔ وي.

د لندو خټـــو دارو لرې اوبهٔ دي

ازموې راباندې دومره زور په څهٔ (حميد)

**لندېدل** :- (لُ/لَ+ن+دې+د+ل)(مص) لوندېدل ، تركېدل ، خُشتېدل.

**لندېده** :- (لَ/لُ+ن+دې+د)(حمص) لونديدهٔ ، تر كېدهٔ ، خوشتېدهٔ.

**لنډ** :- (ل+ن+ډ)(صف ، مذ ، مو ـــــ ه) كوتاه ، په اوږد والي كښې كم. مختصر ، خلاصه.

**ـــــ بزرې** :- (ـــــ ب+ز+رې)(اس ، مو ، ج ــ رې) شاهين.

**ـــــ پارے** :- (ـــ پا+رے)(پ تر ، صف ، اس، مذ، ج ــ رې) تنګ زړے ، زر قهرېدونكے ، بې حوصلې.هغه سړے چې دوستي ئې د خپل غرض وي او زر ختمېدے شي ،غدار ، بې وفا.

**ـــــ فكر** :- (ـــ ف/ في+ك+ر)(فپ ، تر ، صف) هغه چې فكر ئې ژور / جور وي ، كوتاه فكر ،كم انديش.

**ـــــ ګنډ** :-(ـــ ګ+ن+ډ)(صف ، مذ ،مو ـــــ ه)ګنډ د تاكيد دپاره ورسره راغلے دے.ډېر لنډ ، بېخي لنډ ، بالكل كوتاه. ډېر مختصر ،نزدې ،فوراً ، مخې سره ، دستي.

**ـــــ ګنډ بيان** :- مختصر بيان.

**ـــــ ګنډراتلل** :- ډېر زر راتلل ، په ان فن كښې راتلل.

**ـــــ ګنډ نيول** :- ډېر زر نيول ، مخې سره نيول.

**ـــــ لېدونكے** :- (ـــ لي+دو+ن+كے)(پ تر، اس ، فا ، مذ ، ج ــ كي) لنډ نظرے ، تنګ نظر ، كم انديشه.

**ـــــ مېغ** :- (ـــــ مې+غ)(پ تر ، اس، مذ) د مئى د مياشتې باران.

**ـــــ والی** :- (ـــــ وا+لی)(پ تر ، اس ، مذ) اختصار (د ,,اوږدوالی،، ضد).

**لنډاک** :- (ل+ن+ډا+ک)(صف ، مذ ، مو ـــــ ه) لنډ نظرے ،كم فكره ، كوتاه انديش.

**لنډاكي** :- (ل+ن+ډا+كي)(اس ، مو) لنډ نظري ، كوتاه نظري ، كوتاه انديشي.

**لنډان** :- (ل+ن+ډا+ن)(اس،مذ ،ج ــ ان) هلک ،ماشوم ، وړوكے ، سخ د هغه لنډان چې نهٔ په سود وي نهٔ په زيان. (متل).

**لنډر** :- (ل+ن+ډ+ر)(صف ، مذ،ج ــ ان)لونډ سړے ، خوشے ګرځېدونكے ، اوره ګرد ، بد معاش.

**لنډره** :- (ل+ن+د+رَ)(صف ، مو ، ج ـــ رې)د لنډر تانيث دے.

**لنډكې** :- (ل+ن+ډ+ک+ی)(صف ، مو) د ,,لنډكے،، تانيث دے.

**لنډكې** :- (ل+ن+ډ +ک+ی)(اس ، مو) د كاريز كم ژور / جور كوهے.

**لنډكے** :- (ل+ن+ ډ +كے)(صف ، اس ، مذ ، ج ـــ كي)د لنډ تصغير دے. مختصر شان ، لنډ شان ، يو لنډكے مثال ئې داد ے.....

**لنډن** :- (ل+ن+ډ+ن)(اس ، مع) د برطانيې دا رالحكومت يو وخت كښې د دنيا د ټولو نه لوے ښهر وهٔ.

چرته لنډن چرته چترال دے

بې تنګي زور شوه پېرنګے چترال له ځينه (ټپه)

**لنډو** :- (ل+ن+ډو) د ,,لنډ،، بدل شكل چې ځينو معيره ؤ تورو سره راځي.

**په ـــــ** :- په لنډ صورت ، په مختصر بيان ، په خلاصه طور.

**لنډوكے** :- (ل+ن+ډو+كے)(صف) د ,,لنډ،، تصغير دے.ډېر لنډ ، زيات لنډ.

**لنډول** :- (ل+ن+ډ+ؤ+ل) (مص) وركوټے كول ، وړوكے كول.مختصر كول ، كوتاه كول .نزدې كول ، خواته كول .(بازاري) نقصان رسول ، ضرر رسول ، (اصلاً ,,غ،، لنډول).

**خبـره ـــــ** :- (خ+ب+ر ـــــ) خبره مختصره كول ، لنډ ذكر كول ، بيان مختصر كول.خبره فېصله كول ، معامله ختمول.

**مزل ـــــ** :- (م+ز+ل ـــــ) سفر كولو سره منزل مقصود ځان ته رانژدې كول

**لنډون** :- (ل+ن+ډو+ن)(اس ، مذ)(اختصار ، لنډ شكل ، لنډونه ، لنډيز ، خلاصه.

**ـــــ كول** :- اختصار كول ، مختصر كول ، كوتاه كول ، فېصله كول ،(خبره) ختمول.

**لنډونه** :- (ل+ن+ډ+ؤ+نَ)(حمص) اختصار ،لنډون.

**لنډوونكے** :- (ل+ن+ډ+وو+ن+كے)(اس ، فا ، مذ ، ج ــ كي) مختصر كوونكے ، كوتاه كوونكے.

**لنډه** :- (ل+ن+ډَ)(صف ،مو،ج ـــــ ډې) د ,,لنډ،، تانيث دے.كوتاهه.په اوږدوالي كمه ، مندرى ،مختصره ،خلاصه.

**ـــــ منډه** :- (ـــــ م+ن+ډَ)(پ تر ، اس ، مو ، ج ــ ې ــ ې) مختصره منډه، هغه منډه چې زر ختمه شي.مجازاً لنډ فكري ، كوتاه انديشي.

**لنډه** :- (ل+ن+ډَ)(اس ، مو ، ج ـــ ډې) د ملا ښكتنى حصه.د ملا تير د هډوكو اخرينى حصه.(بازاري) كناټے ، كُنه.

**لنـډهر** :- (ل+ن+ډ+هـ+ر)(اس، مذ ، ج ــ ان ، مو ـــ ه) رذيـل سړے ، اوباش.

**لنډه غر** :- (ل+ن+ډ+غ+ر)(پ تر ، صف ، مذ) لكى پرېكړې ، بې لكى ، خوشے ، اواره ګرد ، اوباش.

**لنډه ګاز** :- (ل+ن+ډَ+كا+ز)(اس، مذ) سپين زانے.

**لنډه كه** :- (ل+ن+ډ+كَ)(اس ،مو ، ج ـــ كې) قاز.

**لنډه ور** :- (ل+ن+ډ+ؤ+ر)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) لنډ فكره ، كوتاه انديش ، لنډاک

كه ښې ښې خبرې وكړې په خواب كښې

وائي څـــهٔ حـــــــرامزاده دے لنډور (خوشحال)

**لنډه هر** :- (ل+ن+ډ+هـ+ر) (و ـــ لنډه ور).

**لنډې**:- (ل+ن+ډ+ې) (اس، مو) د ,,لنډه،، تانيث دے.د مارانو يو قسم (وائي چې ددې دوه سرونه وي) (ف: کورمار) د يو کلي نوم.

**لنډۍ**:- (ل+ن+ډ+ۍ) (اس، مو) د ,,لنډے،، تانيث.منډرۍ ښځه. خوشې گرځېدونکې، اواره گرده ښځه، فاحشه. بې لکۍ، کم عقله، بې حيا.

مه ترې حيا غواړه مه ترې وفا غواړه

هغــه لنډۍ ده لکـه د وړاندې ده (خوشحال)

**لنډۍ** :- (ل+ن+ډ+ۍ) (اس، مو) د پښتو د عوامي شاعرۍ يو صنف، ټپه، مصرعه. (ددې صنف دوه مصرعې وي. اولنۍ مصرعه ئې ددويمې نه لنډه وي).

**ـــ وئيل** :- مصرعې وئيل، ټپې وئيل، خوشحالي کول.

**لنډے** :- (ل+ن+ډ+ے) (صف، مذ، ج ـــ دي) لنډ قد واله، منډرے.لنډ فکرے،کم عقل، خوشے، بې حيا.

لنډے به وانئوړي له لنډې توبه

لولۍ به وانئوړي له لوۍ توبه (خوشحال)

**لنډے**:- (ل+ن+ډ+ے) (صف، مذ، ج ـــ ډي) هغه چې لکۍ ئې پرېکړې شوې وي، بې لکۍ.

لکه: لنډے د چقړو نۀ دے.(متل). هغه ځاروے چې لکۍ ئې غوڅه شوې يا لنډه شوې وي.(لنډے غوئے). لنډے که د غوبل په ورځ پيدا شي نو هلو ورک نۀ دے.(متل).

**ـــ مار** :- (ـــ ما+ر) (اس، مذ) لنډ مار. د ماشومانو د يو لوبې نوم.

**لنډے** :- (ل+ن+ډ+ے) (اس، مع) د کابل سيند چې د پېښور سيمې ته راکوز شي او د سوات وغېره سيندونه ورسره يوځاے شي.نوبيا ورته ,, لنډے،، سيند وائي.

**لنډے** :- (ل+ن+ډ+ے) (اس، مذ، ج ـــ ډي) د پخواني ټوپکو يو قسم دے. نيم کونداغے.

**لنډېدل** :- (ل+ن+ډې+د+ل) (مص) په اوږدوالي کښې کمېدل، کوتاه کېدل.مختصرکېدل، اختصار کېدل.

**لاس ـــ** :- (لا+س ـــ) لاس کوتاه کېدل،کنايه: تنگدستي راتلل، غريبي خواري راتلل.کنايه: نقصان رسولو جوگه نۀ پاتې کېدل، بې وسه کېدل.

**لنډېدنه** :- (ل+ن+ډې+د+نَ) (و ـــ لنډېدۀ).

**لنډېدۀ** :- (ل+ن+ډې+د) (حمص) کوتاه کېدۀ، په اوږدوالي کښې کمېده. مختصر کېدۀ ،اختصار کېدۀ.

**لنډيز** :- (ل+ن+ډي+ز) (صف، مذ، مو ـــ ه) مختصر، لنډشان، خلاصه ، لکه: لنډيز بيان.

**لنډيزۍ** :- (ل+ن+ډي+ز+ۍ) (اس، مع) د مسوزئيو دټولو نه لويه څانگه ده. اورکزي دي.

**لنډيس** :- (ل+ن+ډي+س) (اس، مذ) املتاس، مشهوره دوائي.

**لنډي کوتل** :- (ل+ن+ډي+کو+ت+ل) (اس، مع) په خيبر کښې د يو کلي او ځاے نوم.

**لنکے** :- (ل+ن+کے) (اس، مذ، ج ـ کي) يوقسم بوټے، صابونک.

**لنگ** :- (ل+ن+گ) (اس، مذ، ج ـــ ونه) هغه څادر شان چې ځينې خلق ئې د پرتوگ په ځاے د ځان نه چاپېره کوي.تهمد.

**ـــ کول** :- د کوم ټوکي يا څادر وغېره نه لنگ جوړول.

**ـــ مار** :- (ـــ ما+ر) (اس، مذ، ج ـــ ان) هغه سړے چې لنگ ئې وهلے وي.لنگ وهونکے.

**ـــ وهل** :- د ځان نه د پرتوگ په ځاے څادر چاپېره کول. تهمد تړل.د ناداري، غريبۍ له کبله د پرتوگ په ځاے لنگ وهل.

په شملگۍ ئې شوم غلطه

چې کور مې وليد مورئې لنگ وهلے وونه (ټپه)

**ـــ وهلے** :- (ـــ و+هـ+لے) (پ تر، اس، مف، مذ، ج ـ لي) هغه سړے چې لنگ ئې وهلے وي.مجازاً خوار پړق، غريب او مفلس سړے.فقير، درويش.

**مصلي ـــ** :- داسې زهد او تقویٰ اختيارول چې مصله ځان سره لکه د لنگ گرځول.خوارېدل، تنگ دستي راتلل، هر څۀ خرڅ کول، دومره خوارېدل چې د مصلي نه ځان له لنگ جوړ کړي.

**لنگ** :- (ل+ن+گ) (صف، مذ، مو ـــ ه) لنگ شوے څاروے، هغه غوا مېښه وغېره چې بچے ئې زېږولے وي.

**لنگتون** :- (ل+ن+گ+تو+ن) (اس، مذ، ج ـــ ونه) لنگېدنه، زوے لور راوړنه. د لنگېدو وخت، د زوے لور د راوړلو وخت. (نوے لفظ) زچه خانه، په هسپتال کښې هغه کوټه چرته چې ښځې زامن لوڼه راوړي. (انگ: لے بر روم)

**لنگته** :- (ل+ن+گ+تَ) (اس، مو، ج ـــ تې) په کُشتۍ کښې د يو داؤ نوم.چې په کښې خپله پښه حريف ته ور اړمه کړي او راخلاص ئې کړي.

**ـــ اچول / کښېښودل** :- په کُشتۍ کښې حريف ته خپله پښه اړمه ول.مجازاً د چا په کار کښې خنډ اچول.

**لنگر** :- (ل+ن+گ+ر) (اس، مذ، ج ـــ ونه) خېرات خانه، هغه ځاے چرته چې غريبانانو مسکينانو له مفت خوراک ورکولے شي.

**ـــ جاري کول** :- خېرات خانه جاري کول، غريبانانو ته مفت خوراک ورکولو انتظام کول.

**ـــ چلول** :- (و ـــ لنگر جاري کول).

**ـــ چلېدل** :- د چا په ځاے کښې غريبانانو مسافرانو له مفت خوراک ورکولے کېدل.

**ـــ خانه** :- (ـــ خا+نَ) (ف تر، اس، مو، ج ـــ نې) هغه ځاے چرته چې مفته خېراتي ډوډۍ ورکولے شي.د خېرات خانې د اخلي پخلي ځاے.

**لنگر** :- (ل+ن+گ+ر) (ف، اس، مذ، ج ـــ ونه) هغه د اوسپنې درنه راتاؤ کړې څوکو واله کُونډه، کومه چې يو بياستې سره تړلې وي.او چې جهاز کوم ځاے کښې ودرولے شي نو دغه کونډه سمندر (ياسيند) ته ور وغورزولے شي. هغه لويه بياسته، چې يو سر ئې بېړۍ سره تړلے وي او بل سر ئې په وچه باندې مضبوط موړې يا ونې پورې وتړي.چې بېړۍ اوبو سره لاړه نشي.

**ـــ اچول** :- لنگر درياب يا سمندر ته غورځول چې جهاز په ځائې ولاړ اوسي.مجازاً جهاز ودرول.

**ـــ انداز کېدل** :- (و ـــ لنگر اچول).

**لنگر** :- (ل+ن+گ+ر) (اس، مذ، ج ـــ ونه) د پهلوانانو مضبوط لنډلنگ، تنقۍ، تنکۍ.

**لنگر** :- (ل+ن+گ+ر) (اس، مذ، ج ـــ ونه) د گړيال رقاص، (انگ: پنډولم).

**لنگرته** :- (ل+ن+گ+ر+تَ) (و ـــ لنگته).

**لنگرکوټ** :- (ل+ن+گ+ر+کو+ټ) (اس، مع) امازوگړۍ، گړهي کپوره، د يوسفزئيو يو کلے چې مهابت خان دلته د يوسفزئيو خلاف قلا جوړه کړې وه.

لنګر کوټ مغلو ساز کړ
زۀ په تنګ بیاد افغان شوم (خوشحال)

**لنګرۍ** :- (ل +ن+ ګ+ ر +ۍ)(اس ، مو ) د کاني یا د پخې خاورې هغه د ارتې خولې لوښې چې په کښې داروګان یا مسالې وغیره ټکولې شي ـ هغه ارت خولې خاورین لوښې چې په کښې د ګلونو وغیره واړۀ بوټي کرلے شي ـ ګمله ـ غورۍ ، لوے جور (ژور) تالے ـ (یوه لنګرۍ طعام از روئے تکلف په سل په لس روپۍ کېږي ، ډېر بویه چې و هر چا وته رسېږي) ـ (دستار نامه ، خوشحال)

**لنګري** :- (ل + ن + ګ+ ري )(اس ، مذ ، ج ـــــ ان ) هغه سړے چې په لنګر کښې د پخولو کار کوي ـ لانګري ، باورچي ، شپز ـ

**لنګس** :- (ل + ن + ګ + س )(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) د ,,نرګس ،، بدل شکل ـ مشهور ګل دے چې پاڼکۍ ئې سپینې او په مینځ کښې ئې یوه زېړه یا توره پیالۍ شان وي ـ تورې پیالۍ واله ته شهلا نرګس وائي ـ

**لنګواله** :- (ل +ن + ګ+ وا + لَ )(و ـــــ لنګون )

**لنګوټ** :- (ل + ن + ګو + ټ )(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) وړوکے لنګ ، د حمام لنګ ، د پهلوانانو مضبوط لنګ ، تنقۍ ، تنکۍ ـ

**ـــــ وهل** :- د کُشتۍ دپاره تیارېدل ، تنقۍ اچول ـ

**لنګوټه** :- (ل +ن + ګو + ټَ)(اس ، مو ، ج ـــــ ټې ) پټکے ،سپینه لنګوټه ئې تر سر وتړله ـ

**لنګوټے** :- (ل + ن + ګو + ټے )(اس ، مذ ، ج ـــــ ټي ) وړوکے لنګ ـ هغه کم سورے کپړه یا څادرګے چې غریبانان یا فقیران ترې د لنګ کار اخلي ـ

**لنګور** :- (ل + ن + ګو + ر )(اس ، مذ ، ج ـــــ ان ) د بیزوګانو / شادوګانو یو قسم چې ډېر لوے او تک تور وي ـ

**لنګور** :- (ل +ن + ګو + ر )(اس ، مذ ) د کټې ګوټې او د مسواکې ګوټې ( لاکو ـــــ لکړه ) تر مینځه فاصله یا زاویه ـ

**لنګول** :- (ل +ن + ګ + ؤ + ل )(مص ) د غوا مېښې د لنګون په وخت د هغې امداد کول ـ خبره اوږدول ، خبرې له طول ورکول ـ خبره زنګول یا زنډول ـ

**لنګون** :- (ل + ن + ګو + ن )(اس ، مذ )(و ـــــ لنګتون ) ـ

**ـــــ خوږ** :- ( ـــــ خو + ګ / ژ )(اس ، مذ ) د لنګون د وخت دردونه ، درد زه ، د زېږون درد ـ

**لنګه** :- (ل +ن + ګَ )(اس ،مو ، ج ـ ګې ) لنګ څاروے ، هغه غوا مېښه چې لنګه شوې وي او پۍ ورکوي ـ پیه وره ـ لکه : دوه لنګې راته ولاړې دي ـ

**ـــــ غوا** :- ( ـــــ غ + وا )(پ تر ، اس ، مو ) هغه غوا چې نوې لنګه شوې وي او پۍ ورکوي ـ پیوره غوا ـ هغه څیز یا کار چې په مفته کښې ترې فائده اخستے شي ـ فائده رسوونکے څیز ـ

**لنګه** :- (ل + ن + ګَ )(اس ، مو ، ج ـــــ ګې ) د بېډلي کټ یو طرف ته خالي ځاے چې هغه په پړي کلکولے شي ـ هغه پړے چې د کټ د غه خالي ځاے پرې ترلے او کلکولے شي ـ د کټ هغه طرف کوم خوا چې لنګه وي ـ

**ـــــ راښکل** :- د کټ د پیارمې پړے راښکل چې د کټ نه جول ووځي ـ

**لنګېدل** :- (ل + ن + ګې + د +ل )(مص ) زوے لور راوړل (د ښځې) ګنې د (بنیادم دپاره عموماً دا لفظ سپک ګڼلے شي ـ ددې په ځاے زوے لور راوړل یا زوے لور یا اولاد کېدل وائي) د څناورو بچے بچې پیدا کېدل ـ مجازاً : ډېر وخت تېرول ، زنډېدل ، ډېل لګول ـ

**غوا ـــــ** :- (غ + وا ـــــ )کنایه د ګټې یاد فائدې کار روانېدل ـ

**لنګېدۀ** :- (ل +ن + ګې + د )(حمص ) زوے لور راوړنه (د ښځې) د څناور بچې پیدا کېدنه ـ

**لنن** :- (لِ + نَ + نْ )(انګ،اس ، مذ ) یو قسم مهینه (سپینه ) کپړه ـ

**لنوکے** :- (ل + نو + کے )(اس، مذ ، ج ـــــ کي ) د ریښمو نه جوړ شوے یو ګل یا زوندے شان چې زنانه ئې د قمیص په سینه ګنډي ـ

**لو** :- (لو )(اس، مذ ، ج ـــــ ونه ) د فصل ریبنه ـ

**ـــــ او لور** :- ( ـــــ او+ لو + ر )(پ تر ، اس ، مذ ) د فصل ریبنه او د لور کار ـ

**ـــــ او لور ورځې** :- ( ـــــ و + ر +(د) زې )(پ تر ، اس ، ج ) د غنمو او اوربشو وغیره دفصل د لؤ کولو (ریبلو ) ورځې ـ

**ـــــ دے** :- خلق په ګډه په فصل کښې په لو لګیا دے ـ

**ـــــ کول** :- د غنمو اوربشو فصل ریبل ، د فصل کټائي کول ـ

**ـــــ کول ، په ګنه کښې دچا** :- د بل په خوا کښې لو کول ، مجازاً :د بل د ګټې نه فائده اخیستل ـ

**ـــــ کېدل** :- فصل (د غنمو یا داوربشو وغیره ) ریبلې کېدل ، د فصل کټائي کېدل ـ

**لو** :- (لو )(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) د انګورو اوږده څانګه ـ

**لو** :- (لو )(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) مشوق،خواهش ، اشتها ، لوهه ـ

**لو** :- (لو )(صف ، مذ) د ,,لوے ،، مخفف ـ

**لو** :- (لو )(اس ، مذ ) لوړه ، لویه ـ

**ـــــ تبه** :- ( ـــــ ت + بَ )(پ تر ، اس ، مو ، ج ـ بې ) د محرقې تبه ـ

**ـــــ خبر** :- ( ـــــ خ + ب+ ر )(پ تر ، اس ، مو ، ج ـــــ لې ـ لې ) لویه خبره ، اهمه خبره ـ د ځان نه زیاته خبره ـ لوبې ، ډډوزه ـ لاپه ـ

**ـــــ لمن** :- ( ـ ل + م+ ن )(پ ، تر ، صف ، مذ ، مو ـ ه ) لوئې لمنې واله ،مجازاً : سخي ، لوے زړے ، مهربان ، مشفق ـ

**ـــــ ورځ** :- ( ـــــ و + ر + (د) ز )(پ تر ، اس ، مو ) لویه ورځ ، د قیامت ورځ ـ

**لو** :- (لو )(اس ، مذ ) لو وه ، قسم ، سوګند ـ

**ـــــ خوړل** :- قسم خوړل ،سوګند خوړل ـ چې دیده دانسته لوړي ، کار کړي دے بیا لو خوري ـ (فضل نامه خوشحال)

**لو** :- (لُو )(اس ، مذ ) لوګے ، دُود (عموماً نورو الفاظو سره یو ځاے راځي او د ,,لوګے ،، لفظ د ,,لو ،، په معنې کښې استعمالېږي ) ـ

**ـــــ کول** :- لوګے کول ، د کوم څیز نه په مړ اور لوګے پیدا کول ـ

**ـــــ کېدل** :- لوګے کېدل ، د بل څیز نه لوګے پورته کېدل ـ

**لوا** :- (لِ + وا )(ع ، اس ، مو ، ج ـ ګان / وې ) جنډه ، نشان ، عَلَم ـ

**ـــــ مشر** :- ( ـــــ م + ش + ر )(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان)د جنډې مشر ، د علم بردارانو افسر ، قوماندان غنډ ، غونډ مشر ـ

**لوات** :- (ل + وا + ت )(صف ، مذ ، مو ـــــ ه ) پرانستے ، ویړ ـ

چې مې سترګې د باور کړې سره لواتې
په جهان کښې خونیکې ده نورې باتې (خوشحال)

**لواتېدل** :- (ل + وا +تې + د + ل)(مص ) پرانستے کېدل ، ویړېدل ـ

**لواحقین** :- (ل +وا + ح + قي + ن )(ع ، اس ، ج ) د ,,لواحق ،، جمع ده ـ چې د ,,لاحق ،، جمع ده ـ یعني جمع الجمع ده ـ خپل خپلوان ، رشته داران ، د تېر خلق ـ

**لوار** :- (ل +وا + ر )(اس ، مذ )د سېلاب لاره ـ

**لوار** :- (لُو + وا + ر )(اس ، مذ ، ج ـــــ ان ، مو ـــــ ه ) اهنګر ، لوهار ، د وسپنې کار کوونکے ـ پَش ـ

**لواړ** :- (ل + وا+ ړ )(صف ، مذ ، مو ـــــ ه ) ثابت ، په غاښونو مېده کولو نه بغېر ـ

**ـــــ تېرول** :- ثابت تېرول ـ په خولۀ کښې د مېده کولو نه بغېر تر مرۍ ښکته کول ـ

**ـــــ تېرېدل** :- ثابت تېرېدل ، په خولۀ کښې د مېده کېدلو نه اول ګېډې ته

وربښکته کېدل.

**لواړ** :- (ل + وا + ړ) (صف ، مذ ، مو ــــه) سخت ، ستغ ، درشت ، ناهموار مجازاً: بې تهذيبه.

**ــــ اوړهٔ** :- (ــــ او + ړهٔ) (پ تر ، اس ، جم) غټې غټې اوړهٔ کړے اوړهٔ . هغه اوړهٔ چې ډېر مېده نهٔ وي.

**ــــ توب** :- (ــــ تو + ب) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) ستغ والے ، درشتي ، سختي ، ناهمواري.

**ــــ والے** :- (ــــ وا + لے) (و ــــ لواړتوب).

**لواړګے** :- (ل + وا + ړ + ګے) (اس ، مع) د خيبر قبلې ډډې ته علاقه ، لنډيکوتل.

**لواړول** :- (ل + وا + ړ + ؤ + ل) (مص) ستغول ، ناهموار کول ، درشتول ، سختول.

**لواړې** :- (ل + وا + ړې) (صف ، مو ، ج) د ,, لواړه ،، جمع ده.

**ــــ خبرې** :- (ــــ خ + ب + رې) (پ تر ، اس ، ج) ستغې خبرې ، سختې خبرې ، تېزې او تُندې خبرې.

غــــافلان په غوږ کانهٔ دي نهٔ ئې اوري

د خوشحال خټک د خولې خبرې لواړې (خوشحال)

**ــــ لواړې خبرې** :- ستغې خبرې کول ، سپورې خبرې کول . سختې خبرې کول.

څود ښهٔ د فکر شخوند وهلے نهٔ وي

چې شه مه کوه خبرې لواړې لواړې (حميد)

**لواړېدل** :- (ل + وا + ړې + د + ل) (مص) ناهموار کېدل ، ستغېدل ، شخېدل ، سختېدل.

**لوازمو** :- (ل + وا + ز + مو) د ,, لوازم) بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**د ــــ مدير** :- د يو محل وغېره د لوازماتو ذمه دار افسر.

**لواشه** :- (ل + وا + شَ) (اس ، مو ، ج ــــ شې) چپاتے ، نرۍ ډوډۍ.

**لواغر** :- (ل + وا + غ + ر) (اس ، مع) د کوهاټ په ضلع کښې د يو غر نوم.

چې احوال د يوسفزئيو را معلوم شهٔ

لــــواغر و ماته ښهٔ وو نهٔ دمغار (خوشحال)

**لواطت** :- (ل + وا + ط + ت) (ع ، اس ، مذ) د نارينه نارينه سره بدفعلي کول . بچه بازي . (دا لفظ حضرت لوط عليه السلام د نوم سره تعلق لري . د حضرت لوط [۴] قوم کښې دا بدکاري ډېره زياته وه او په دې وجه دغه قوم هلاک کړے شهٔ . دغه بدکاري دغې قوم ته منسوبه شوه . هر کله چې دغې قوم څهٔ خاص نوم نهٔ لرهٔ او ورته به ئې د لوط عليه السلام قوم يا لوطيان وغېره وے . ځکه ددې بدکارۍ په نوم کښې هم د لوط عليه السلام نوم شامل شهٔ . چې ډېر قباحت لري . ځکه ښائي چې د لواطت لوطي وغېره الفاظو په ځائے نور الفاظ استعمال کړے شي . چې دغې لوئې پېغمبر د نوم الفاظ له استعماله ووزي. (بخاري)

**لوام** :- (ل + وُ + وا + م) (ع ، صف ، مذ ، مو ــــه) ډېر زيات ملامته کوونکے ، تور لګونکے.

**لوانده** :- (ل + وا + ن + دَ) (صف ، ج) د ,لُوند ،، جمع ده . خوشتهٔ ، په اوبو تر ، نمجن ، لامدهٔ.

**لوانه** :- (ل + وا + نَ) (اس ، مو ، ج ــــ نې) د کارېز هغه کوهے چې بره سر ئې شګلن وي.

**لواور** :- (ل + وا + و + ر) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه) لور ، د واښو ګياه وغېره د رېبلو اله.

**لوائح** :- (ل + وا + ئے + ح) د ,, لائحه ،، جمع ده.

**لوايې** :- (ل + وا + يې) (اس ظ) صبح صادق ، سحر وختې.

**لوب** :- (لو + ب) (سابقه) سابقه ده . د ,, لوبې ،، مخفف هم دے . نورو الفاظو نه وړاندې لګي . لکه : لوبغاړے.

**ــــ ځائے** :- (ــــ (د) زا + ئے).

**ــــ ځے** :- (ــــ (د) زے) (و ــــ لوب غالے).

**ــــ غالے** :- (ــــ غا + لے) (اس ، مذ ، ج ــــ لي) د لوبو لوے مېدان ، چې چار چاپېره ترې د تماش بينو د ناستې ځايونه وي . ستېډيم.

**لوباتل** :- (لو + با + ت + ل) (مص) قسم ورکول ، سوګند ورکول.

**لوباتلے** :- (لو + با + ت + لے) (اس ، مف ، ج ــــ لي) قسم ورکړے شوے ، هغه چې سوګند ورله ورکړے شوې وي.

**لوبان** :- (لو + با + ن) (ع ، اس ، مذ) يو قسم ګوند دے . چې په اور کښېښودلو سره خوشبوئين ورکوي.

**لوبتکه** :- (لو + ب + ت + ک) (اس ، مو ، ج ــــ کې) د هلکانو د لوبې اله.

**لوبټ** :- (لو + ب + ټ) (اس ، مذ ، ج ــــ ان) لوبټ ، مرغ زرين.

**لوبځے** :- (لو + ب + (د) زے) (اس ظ) د لوبوځاے ، د لوبو مېدان.

**لوبڅے** :- (لو + ب + (ت) سے) (اس ، مذ ، ج ــــ څي) د لوبو څيز ، ګډاګے.

**لوبغاړتوب** :- (لو + ب + غا + ړ + تو + ب) (پ تر ، اس ، مذ) په لوبه کولو کښې مهارت ، د لوبې پوهنه . مجازاً چالبازي ، تجربه کاري.

**لوبغاړے** :- (لو + ب + غا + ړے) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ړي) لوبه کوونکے ، په لوبه کښې برخه اخستونکے . لوبې ښوونکے . ورزش کوونکے . په کوم فن يا هنر کښې مهارت لرونکے . مجازاً چالباز ، دوکه مار ، ګُرګ.

**لوبغاړې** :- (لو + ب + غا + ړے) (صف ، مو ، مذ) لوبې کوونکې ، لوبې ښوونکې ، بازيګره . لکه لوبغاړې کونتره.

**لوبګر** :- (لو + ب + ګَ + ر) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ان ، مو ــــ ه) لوبه کوونکے ، لوبغاړے.

**لوبو** :- (لو + بو) د ,, لوبې ،، (جمع) بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**د ــــ ګوډاګے** :- (د ــــ ګو + دا + ګے) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ګي) د چيرړو ، پلاسټکو وغېره نه جوړ شوے دهلک يا جينۍ بت . (ګوډۍ) چې جينکۍ ورسره لوبې کوي . مجازاً: هغه سړے چې خپل هېڅ اراده يا خواهش وغېره نهٔ لري او د بل د مقصد يا د مرضۍ مطابق کار کوي.

**د ــــ مېدان** :- هغه مېدان چې په کښې هلکان (يا جنيکۍ) مختلف قسم لوبې کوي.

**لوبول** :- (لو + ب + ؤ + ل) (مص) په نورو لوبه کول ، نور په لوبه کول . لوبغاړي په لوبه کښې مصروفول . اله کار جوړول ، د خپل مقصد مطابق کار اخيستل.

**لوبونه** :- (لو + ب + ؤ + نَ) (مص) د ,, لوبول ،، حاصل مصدر دے . په لوبو کونه ، په لوبو کښې مشغولونه . اله کار جوړونه.

**لوبوونکے** :- (لو + ب + وو + ن + کے) (اس ، فا ، ج ــــ کي) هغه کس چې نور لوبغاړي په لوبو کښې مشغولوي . د لوبو ماهر يا استاد.

**لوبوونے** :- (لو + ب + وو + نے) (و ــــ لوبوونکے).

**لوبوونے** :- (لو + ب + وو + نے) (اس ، مذ ، ج ــــ ني) د لوبو څيز ، ګوډاګے.

**لوبه** :- (لو + بَ) (اس ، مو ، ج ــــ بې) بازي (اُر : کهيل) ورزش ، چال ، فرېب ، دوکه ، عجيبه کار يا پېښه.

**ــــ کول** :- بازي کول ، لبه کول ، ورزش کول (و ــــ لوبې کول) ټګي کول ، چل کول.

**ــــ ګټل / وړل** :- په مقابله کښې برے وړل ، د لوبو په مقابله کښې مخالفې

ډلې له ماتې ورکول.

**دپانوـــ** :- (د ، پا + نوـــ)(پ تر ، اس ، مو ) د تاش لوبه.

**لوبه** :- (لو + بَ)(اس ، مو ، ج ــ بې) د پښتو د اولسي شاعرۍ يو مشهور صنف ، ددې ډېر قسمونه دي.

**لوبې** :- (لو + بې) د ,, لوبه ،، جمع ده.د مغېره ؤ تورو سره استعمالېږي.

**ـــ کول** :- په مختلفو لوبو کښې مشغولېدل .دا لفظ عموماً د ماشومانو هلکانو جينکو په حقله وئيلے شي.چې په قسم قسم لوبو ځان مشغول ساتي او ,,لوبه کول ،، خاص قسم لوبه لکه هاکي ، فټ بال وغېره دپاره استعمالېږي.مجازاً : په کار کښې سستي کول.

**ـــ کول ، په چا** :- د چا نه الهٔ کار جوړول .رسوا کول ، ذليل کول يا تکليفونه ورکول.

**لوبيا**:- (لو + ب + يا )(اس ،مو ،جم) مشهوره غله ،چې پخولے شي.کُرخې.

**لوبېدل** :- (لو + بې + د + ل)(مص) لوبې کول ، په لوبو / لبو کښې مشغولېدل .مجازاً : تجربه کار کېدل. دچاالهٔ کار جوړېدل.

**لوپ** :- (لو + پ)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) چال ، هنر ، چل.

**ـــ کول** :- چال کول ، چل کول ، چال چلېدل ، هنر يا لوبه کول.

**لوپټــه** :- (لــو + پ + ټَ)(اس ، مــو ، ج ـــ ټــې) د زنانــهٔ ؤ وړوکــے ســپک ځادرګے.(هـ ــ دوپټه).

**ـــــ ورپسرؤل** :- عـزت ورکـول ،احـترام کـول .(عکسـاً) بې عزتـي کـول ، شرمول.

**لوپه لوپه** :- (لو + پَ+ لو + پَ)(صف ، مؤ) ول په ول ، ول ول ، تاؤ راتاؤ ، ګنجې ګنجې.(د وېښتو د صفت په طور راځي).

**لوت** :- (ل +ت)(صف ، مذ ،مو ـ ه) سست ، نرم ، غېر محکم.

**لوته** :- (لو + تَ) د,,لوت ،، تانيث دے.

**پښــه / ښــپه ـــ کښېښــودل /اېښــودل** :- پښــه / ښــهٔ ســسته غېــر محکمــه کښېښودل ، مجازاً بې احتياطي کول.

**لوټ** :- (لو +ټ)(انګ ، اس ،مذ ، ج ـــ ونه) د ,, نوټ،، بدل شکل دے. کاغذي سکه ، چې د زرو د سکو په ځاے استعمالېږي.(پښتو کښې ن اکثره په لام بدلېږي).

**لوټ** :- (ل + و + ټ)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) سيک ، طاقت ، تاب.

د نيني په څېر ئې زړهٔ د عشق له بټه

بېرون ولـــوېدهٔ له تاب سره بې لوټه (شاه و ګدا)

**لوټ** :- (لو +ټ)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) شوکه ، په زور د خلقو نه د هغوي مال دولت شوکونه.

**ـــ باز** :- (ـــ با + ز )(و ــ لوټ مار ).

**ـــ پاټ** :- (ـــ پا +ټ)(و ـــ لوټ پوټ).

**ـــ پاټ کول** :- (و ـــ لُوټ پُوټ کول).

**ـــ پاټ کېدل** :- (و ـــ لُوټ پُوټ کېدل).

**ـــ پُوټ** :- (پ ،تر ،اس ،مف) شوکولے شوے ، شوکېدلے ، لوټ شوے . غارت شوے ، تباه شوے.

**ـــ پُوټ کول** :- ببخي شوکول ،داسې شوکول يا لوټل چې هېڅ ورتـه نهٔ پرېښودل مجازاً تباه کول ، غارت کول ، تاراج کول ، بربادول.

تاخت باخت د محبت هسې لوټ پوټ کړم

چـې مې يو اسباب د صبر موجود نشته (حميد )

**ـــ و پوټ کېدل** :- تاخت و تاراج کېدل ، تالاترغه کېدل.

**ـــ مار** :- (ـــ ما + ر ) شوکه او وجله/ وژله يا وهل ټکول ، لاره شوکونه ، يا په جنګ کښې د دښمن د کورونو نه مال دولت په زور اخيستنه.

**ـــ ماري** :- (ـــ ما + ري)(اس ، مو ) شوکه ، لوټ کونه ، لوټ ، تباهي ، غارت ګري ، ظلم ،اندېر.

**ـــ ميرے** :- (ـــ مي + رے )(پ ،تر ،اس ،مذ ،ج ـــ ري) د شوکمارو مشر.

**لوټ** :- (لو + ټ) د ,, لوټه ،، مخفف دے .چې د سابقې په طور نورو الفاظو سره راځي.

**ـــ ماله** :- (ـــ ما + ل)(پ ،تر ، اس ،مو ،ج ـــ لې) مالـه ، هغـه تختـه چې قلبې پسې وتړي ، او د سادين لوټې پرې هواروي.

**لوټ پوټ** :- (لو + ټ + پو + ټ)(مف ، مذ ) لاتدې باندې،مجازاً ناقلاره ، مضطرب ، پرېشانه ،مئين ، عاشق.

**ـــ اوړېدل** :- اړخ په اړخ اوړېدل ، ډډه په ډډه اوړېدل.

**لوټونو** :- (لو + ټو + نو ) د ,, لوټونه ،، بدل شکل چې د مغيـره ؤ تورو سره راځي.

**لوټکه** :- (لو + ټ + که )(و ـــ لوټکے ).

**لوټکي** :- (لو + ټ + کي ) د ,, لوټکے ،، جمع ده.

**ـــ اړول ،په چا** : بازيګرې په چااړول ، بازيګري ورکول.مجازاً: راپرزول او اړول را اړول.ډېر وهل ټکول.

**لوټکۍ** :- (لو + ټ ک + ی) د ,, لوټکے ،، تصغير دے.

**ـــ اړول** :- (و ـــ لوټکي اړول).

**لوټکے** :- (لو + ټ + کے )(اس ، مذ ، ج ـــ کي) يو قسم مخصوص خاورين لوښے چې عموماً ارټونو کښې تړلے شي او د کوهي نه پرې اوبهٔ راوباسي. دا عموماً د بيضوي شکل وي.

دنيا د ارټ لوټکے دے کله تش وي کله ډک. (متل).

د ارټ د لـوټکي پـه شـان بيضـوي خـاورين لوښـے چـې پئـې پـه کښـې لوشلے شي.

**لوټکے** :- (لو + ټ + کے )(اس ، مذ ، ج ـــ کي) بازيګره.

**ـــ اړول** :- بازيګره اړول .سر د لاندې کول او پښې په ځان را اړول . قلابازي خوړل .

**لوټکے** :- (لو + ټ + کے )(اس ، مذ ، ج ـــ کي)د نغرې په دريو پايو کښې يوه پايه.چې عموماً مخروطي شکل لري.

**لوټل** :- (لو + ټ +ل)(مص) شوکه کول ، لوټ کول ، شوکول ،مال دولت د چا نه په زور اخيستل ، غارت کول.مجازاً ګران فروشي کول ، څيزونه ګران ګران خرڅول.

**لوټن** :- (لو + ټ + ن )(هـ ، صف) بازيګر ، عموماً بازيګر کوتتر/ کوتترې تـه وائي.(هـ. لوټن کبوتر ).

**لوټنه** :- (لو + ټ + نَ)(حمص) لوټ کونه ، شوکونه ، شوکه.

**لوټول** :- (لو + ټ + ؤ + ل)(و ـــ لوټل).

**لوټه** :- (لو + ټه) په معنٰی د لوټل.

**ـــ کېدل** :- لوټلے کېدل ، شوکېدل.

د اورنګ بادشاه په دور عـــدل نشته

تر طناب لاندې په ښهر کښې لوټه شم (خوشحال)

**لوټه** :- (لو + ټ)(هـ ، اس ،مو، ج ـــ ټې) مسينه ياد سلورو کوزه چې غـړۍ ئې ارته او وړه وي.

**لوټه** :- (لو + ټَ)(اس ،مو،ج ـــ ټې) د خټو خاورو يو وړوکے يا لوے چم.

**ځان په لوبه ـــ خېژول /خېجول** :- ځان لوے ګڼل ،ځان ته څهٔ وئيل.

**دسادين ـــــ** :- (د سا + دي + ن ـــــ) هغـه لوټـه چې اړولې شوي پټې کښې وي.مجازاً: بې وقره او سپک څيز يا بنيادم او په تازه په تـازه .

ګيټي د سادين لوټې په کال کېنې پس چرګان، کـه چا ومونـد تـاوان ،
ځاے ئې زۀ علي خان. (ګوئے)

**لوټې** :- (لو + ټې) د لوټه جمع ده ـ د ,, لوټه ،، بـدل شکل چې د مغيـره ؤ تـورو سره راځي.

**ــــ لوټې کول** :-ديوال يا کور داسې نړول چې لوټې ترې جوړې شي ـ ببخي نـړول ، بربادول ، تباه کول ، د کور يا ښهر يا د ملک په حقله وئيلے شي )

**ــــ لوټې کېدل** :- ببخي نړېدل ، هېڅ ځاے په کېنې روغ ثابت نۀ پـاتې کېـدل ، تباه کېدل ، بربادېدل.

**لوټې** :- (لو + ټې) (صف ، مذ ) نادار ، مفلس.

**لوټېدل** :- (لو + ټې + د + ل) (مص) لوټ کېـدل ، شوکېدل ، تـاراج کېـدل مـال دولت د چا نه په زور اخيستلے کېدل.

**لوټېرے** :- (لـو + ټې + رے) (هـ ، اس ، مـذ ، ج ـــ ري) شـوکمار ، لـوټ بـاز مجازاً : ګران فروش (هـ : لټيرا).

**لوچک** :- (لو + چ + ک) (اس ، مذ ،ج ـــ ان ، مو ـــ ه) اواره ګـرد ، خوشـے ، لوچه سړے ، اوباش.هغه څناور چې وبښتۀ پرې نۀ وي.

**لوچکۍ** :- (لو+ چ + ګ + ی) (اس ، مو ) ماشوره.

**لوچه** :- (لو + چَ) (و ـــ لوچک).

**لوچۍ** :- (لو + چ + ی) (هـ ، اس ،مو) د مېدې نرے چپاتے چې په غـوړو کېنې تلولے شي.

**لوچي** :- (لو + چي) (و ـــ لاچي).

**لوځ** :- (لو + (ت) س) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) لڅ ، بربنډ ، لغړ ، د ونې څانګـه چې پاڼې مانې ورپورې نۀ وي.

**ــــ پوځ** :- (ــــ پو + (ت) س) (صف ، مـذ ، مو ـــ ه ـــ ه) ببخي بربنډ ، بالکل لغړ ، ناقلاره ، بې ارامه ، ډډه په ډډه.

**ــــ پوځ کېدل** :- ډډه په ډډه اوړېدل ، بې قراري څرګندول.

بـــې ارامه ناقرار يم
لوځ پوځ کېږم په بستر (حسين)

**ــــ سر** :- (ـــ س + ر) (پ تر ،اس ،مذ ، ج ـــ ونه) بربنډ سر ، سر سرتور.

**لوځک** :- (لو + (ت) س + ک) (و ـــ لوچک).

**لوځکه** :- (لو + (ت) س + کَ) (اس ، مو ، ج ـــ کې) ګوډۍ ، د لوبو ګوډاګے.

غافلان له دې دنيا سره کا لوبې
لکه پېغله جن بازي کا په لوځکو (خوشحال)

**لوځکے** :- (لو + (ت) س +کے) (اس ، مذ ، ج ـ کي) خوشامندګرے.

**لوځول** :- (لو+ (ت) س + ؤ + ل) (مص) بربنډول ، لغړول ، لڅول.

**لوځه** :- (ل + وَ + (ت) س) (اس ، مـو ، ج ـــ ځې) پـه ځينـو پښـتني قبيلـو کېنې رواج دے چې مېلمـه لـه وار پـه وار ډوډۍ ورکـوي ـ د ډوډۍ دې وار ته لوځه وائي.

**لوځے** :- (لـو + (ت) سے) (لاحقه) لاحقـه ده ـ نـورو الفاظو سره لګي. چې د ,, ور ،، معنې ورکوي.لکه خبر لوځے.

**لوځې پوځې** :- (لو + (ت) سې + پو + (ت) سې) (اس ، جم) ناقلاري ، اضـطراب ، په ناقلارۍ کېنې لاس و پښې د ېخوا اخوا غـورزول.منت زاري ، جزع و فزع.

**ــــ کول** :- منت زاري کـول ،جزع فـزع کـول،د ناجوړتيـا پـه سختۍ کېنـې د ناقلارۍ په وجه لاس و پښې د ېخوا اخوا غورزول.

پـــه دا لـــوځـــو پوځو نۀ رسم تر ياره
د سيميا علم مې نۀ زده چې مرغه شم (خوشحال)

**لوځې پوځې** :- (لو + (ت) سې ، پو(ت) سې) (و ـــ لوځې پوځې).

**لوڅېدل** :- (لـو + (ت) سې + د +ل) (مـص) بربنډېـدل ، لغړېـدل ، لـڅ کېـدل ، لڅېدل.راز ښکاره کېدل ، پړده نۀ پاتې کېدل.(نور الفاظ د ,, لڅېدل ،، ترلاندې وګورئ).

**لوڅېدل** :- (لو + (ت) سې + د + ل) (مص) ګـذران کـول ، سره راښکل ، لاس پښې وهل

دا خو زۀ د ستا د غم سره لوڅېږم
ځوک له دېوه سره کا پهـــلواني (رحمان بابا)

**لوڅېـدل** :- (لـو + (ت) سې + د + ل) (مـص)لـوځې پـوځې کـول ـ لاندې بانـدې اوړېدل.په کشتۍ کېنې کله دواړه يو تر بله لاندې باندې کېدل.

دا مې زړۀ د يار د غـــم سره لوڅېږي
که جنګېږم په خپل برېد مغل پښتون (حسين)

**لوح** :- (لو + ح) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / الواح) د کاڼي وغېره هواره تخته.

**لوختی** :- (لو + خ + ت + ی) (اس ، مو) لوخه ، چې پرې وغېره ترې جوړولے شي

**لوخړول** :- (لو + خ + ړ + ؤ + ل) (مص) (و ـــ لوغړول).

**لوخړولے** :- (لو+ خ +ړ+ ؤ+ لے) (و ـــ لوغړولے يا لغړولے).

**لوخړونه** :- (لو + خ + ړ + ؤ+ نَ) (و ـــ لوغړونه يا لغړونه).

**لوخړوونکے** :- (لو +خ + ړ + وو+ن +کے) (و.لوغړوونکے يا لغړوونکے).

**لوخړه** :- (لو + خ + ړَ) (اس ، مو ، ج ـــ ړې) تور او ګور لوګے.

**دزړۀ نه ــــ وتل** :- زړۀ ته ډېر زيات تاؤ يـا تکليف رسـېدل ، چې اسويلي سره لوګے د خولې نه را ووزي.ډېر زيات افسوس او غم رسېدل.

**لوخړې** :- (لو + خ + ړې) د لوخړې جمع ده ـ د ,, لوخړه ،، بـدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ــــ ختل** :- ډېر زيات ګُور او تور لوګے د اور په وجه پورته کېدل.

**ــــ وېستل** :- (دچيلم نه) د کوم څيز (لکه چيلم نه /څخه) ډېر لـوګے اېسـتل ، ډېر زيات چيلم څښکل.

**لوخزه** :- (لو + خ + زَ) (اس ، مو ، ج ـــ زې) لوخړه ، ګُور لوګے.

تر صفات پورې ذات هسې معلومېږي
لکه اور چې څـــرګند ېږي لـــه لـــوخزه (دولت)

**لوخه** :- (لو + خَ) (اس ، مو ، ج ـــ خې)خاص قسم اوږدۀ وابښۀ يـا بـوټے چې په اوبو کېنې کېږي.او بوڼ او نور څيزونه ترې جوړولے شي.

**لوخے** :- (لو + خے) (و ـــ لوښے).

**لود** :- (لو + د) (ف ، اس) د غړۀ لمن (ظفر).

**لودانه** :- (لو + دا + نَ) (اس ، مو ، ج ـــ نې) ناوه ، پرناله.

**لودره** :- (لـو + د + رَ) (اس ، مـو ، مـذ ـــ درې) د څرمنې غښـتلې تسـمه يـا پړے چې په قلبه کېنې پکارولے شي.

**لودره** :- (لو + د + ر) (اس ، مو ، ج ـــ ړې) کربل ، کوربل ، شور فرياد.

**ــــ کول** :- شور غوغا کول ، فرياد کول ، کربل کول.

**لودل** :- (لو + د + ل) (مص) ګواهي ورکول ، شاهدي لل.

**لودن** :- (لو + د + ن) (حمص) ګواهي ، شاهدي ,طرف ، لورے.

**ــــ ورکول** :- واهي ورکول.

**لودنـه** :-(لـو + د+ نَ) (حمص) ګـواهي ورکونـه ، ګـواهي ، شـاهدي ، د حقيقت څرګندونه

**لودے** :- (لو + دے) کرانے ، د کشتيو ېېړيو لاڼ ښودولے (چې کاڼي سره ډغره ونۀ خوري).

**لوديان** :- (لو + د + يا + ن) (اس ، تثنيـه) د دوه ؤ سـتورو نـوم دے چې سـهېل طرف ته د سحر په وخت راخېژي.

**لودين** :- (لو + دي + ن)(اس ، مع) لودي ، لودهي ، د پښتنو مشهوره قبيله.

بيــــا بهــلول لودين بادشاه شۀ د دهلي
چې په تخت ئې نه ويشت کاله سکونت وو (خوشحال)

**لوظ** :- (لو + ظ)(اس ،مذ ، ج ــــ ونـه)(اصلاً د "لفظ" بدل شکل دے. عموماً لوظ ليکلے کېږي.ف اکثره په واو بدلېږي.قول ، وعده ، اقرار.

**لور** :- (لو + ر)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) يوه نرۍ نرۍ غاښونو واله چې وابۀ ما ښۀ پرې رېبلے شي.(ار ــ درانتی)(ددې جمع "لرونه" ، راځي).

ـــــ **په لوټه تېرول / اچول** :- لوټه ډېر پوس څيز دے.په دې لورنشي تېره کېدے.ځکه کنايتاً په کار کښې سستي کول ، آنې بانې کول.هسې فضول وخت اړول.د کار نه ځان بچ کول.

**لو ــــ** :- (لَوْ ـــــ)(پ ، تر ، اس ، مذ) د فصل د رېبلو او د لـور نه د کار اخيستلو سره متعلق.

**دلو ـــ ورځې / موسم** :- د غنم اوربشـو د فصلونو دپخېدو او لرونو سره د لو کولو ورځې د زمينداراتو د ډېر مصروفيت ورځې يا موسم.

**لور** :- (لو +ر)(اس ،ظ) طرف ، ډډه ، اړخ ، خوا ، لورې ، جانب.

چــې مــې يــار په لور د مهر گذر نه کا
خدا ے زده نۀ پوهېږم بياځۀ وسواس ونيو (خوشحال)

ـــــ **په لور** :- (ـــــ پ + لو + ر)(اس ، ظ) هر لوري ته ،هر طرف ته خوا ته.

ـــــ **دلور** :- (ـــ د ، لو + ر)(اس ، ظ) د هرطرف نه / څخه ،د هرې خوا نه / څخه.

په څو بل لوري ته گورې ځان نادان کړې
چې په ما باندې غوغــا شي لور د لوره (خوشحال)

**لور** :- (لو +ر)(ف ، اس ، مذ) د ډانډ مار لينده چې هغه پرې مـالوچ وهي.

**لور** :- (لو + ر)(اس ، مذ) رواداري ، لطف.

**لور** :- (لو + ر)(اس ، مو ، ج ــ رې) د "لار" ، بدل شکل دے.راه ، سړک.

**لور** :- (لو + ر)(اس ، مو) دختر ،(د زوئې په مقابله کښې)(ددې جمع "لوڼه" ، راځي.ځينې خلق ئې جمع لوربانې او لورانې هم کوي).

**لورغے** :- (لو +ر + غے)(اس ، مذ ، ج ـــ غي) هغه ورغومے کوم چې شپون لـه د اجرت په طور ورکولے شي.

**لورگ** :- (ل + ؤ + ر + گ)(اس ، مذ ، ج ـــ ان) يو قسم ځناور دے -چې د غار په خولۀ کښې ودرېږي او چغې وهي.

**لورگے** :- (لو + ر +گے)(اس ، مذ ، ج ــ گي) د "لور" ، تصغير دے -وړوکې لور.

**لورم** :- (ل+ و + ر + م)(و ــ لورند).

**لورن** :- (ل+ و + ر + ن)(و ـــــ لورند).

**لورند** :- (ل + وَ + ر + ن + د)(اس ، مذ) د يو بـوټي نـوم دے -تخم ئـې تـور اوريشه ئې سرۀ وي.د سور رنگ جوړولو دپاره پکارولے شي.

**لورند**:- (لو + ر + ن + د)(اس ، مذ) د يو قسم دارو نوم دے.رېوند ،اترنگ.

**لورنه** :-(لو + ر + نَ)(حمص) رواداري ، ملاطفت ، مهرباني ، لور.

ــــــ **غوښتل** :- د مهربانۍ سلوک غوښتل.ملاطفت غوښتل.

ــــ **کول** :- مهرباني کول ، رواداري کول ، د لطف نه کار اخستل.

**لورول** :- (لو + ر+ ؤ + ل)(مص) رواداري کول ، مهرباني کول ، د ملاطفت نه کار اخيستل.

**لوري** :- (لـو + ري)(اس ، مـذ ، ج) د "لورے" ، جمع ده - د "لـورې" ، بـدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**لورې** :- (لو + رې)(اس ، مذ ، ج ـــ رې)لور ، طرف ، جانب.

ـــــ **نيول** :- لار اختيارول ، په لور يا طرف ته تلل.

چې ئې څۀ ددنيا سودځۀ ئې فائده وي
د خپــل زړۀ په يرغ نيسي هغه لورې (خوشحال)

ـــــ **نيول ، دچا** :- دچا طرف اختيارول ، د چا په پره کښې شاملېدل.د چا په حمايت يا پناه کښې راتلل.

**لورېـدل** :- (لـو + رې + د + ل)(مـص) ښـۀ سـلوک کېـدل ، د رواداری يـا د مهربانۍ سلوک کېدل.

**لورېزه** :- (لو + رې + زَ)(اس ، مو) د گنډلو يو قسم دے چې د تير بوزې په شان وي.

**لورين** :- (لو + ري + ن)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) "کور" ، سره تعلق لرونکے ، مهربان ،رواداري کوونکے ،لطف و کرم کوونکے ، مشفق.

**لورينه** :- (لو +ري +ن)(حمص)(و ــ لورنه) د لورين تانيث دے.

**لوريېل** :- (لو + رې + ئ + ل)(و ـــ لورول).

**لورينه** :- (لو + رې + ئ + نَ)(حمص) رواداري ، مهرباني ، شفقت.

**لوړ** :- (ل+ و + ړ)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) غټ لرگے ، کوتک.

نېکنامي له نېک خوئ نه پيدا کېږي
دغـــه چاره نۀ په سُوک نۀ په لــوړ ده (رحمان بابا)

**لوړ** :- (لو + ړ)(اس ، مذ) د ډانډ مار د مالوچو د وهلو لرگے (و ـــ لور).

**لوړ** :- (لُ + ړ) د "لوړ" ، مختصر شکل دے.پاس دنگ، اوچت ، بلند.

ـــ **او ځوړ** :- (ـــ او ، (د) ز + ؤ + ړ)(پ ،تر ،مذ) اوچت او ښکته ، لوړ اوجور ، ژور ، نشيب و فراز. هر قسم حالات وغيره.

ـــــ **تيا** :- (ـــــ ت + يا)(اس ، مو ، ج ـــ گانې) اوچت والے ،دنگ والے ،اوچته مرتبه ، اعزاز ، عزت ، سربلندي.

ـــــ **څنگي** :- (ـــــ(ت) س +ن + گ +ي)(پ تر ، صف ، مو) لوړو څانگ يا لاسکو والا.لکه لوړ څنگۍ کُرسۍ.

ـــــ **روبے** :- (ـــ رو+ بے)(پ تر ، صف) عالي قدر ،لوے قدر واله ، لوئې مرتبې واله.

ـــــ **اواز** :- (ــــــ ا + وا + ز).

ـــــ **ږغ** :- (ـــــ ژ + غ).

ـــــ **غږ** :- (غ + گ) اوچت اواز ، په زوره اواز.

ـــــ **غي** :- (ـــــ غ +ی)(پ تر ، اس ، مو) د هلکانو يوه لوبه چې لرگو (ډنډو) سره کولے شي.

ـــــ **فکر** :- (ـــــ ف / فـي + ک + ر)(اس ، مذ ، ج ــــ ونـه) اوچت فکر او سوچ ، اوچت خيالات ، اعلٰی فکر.

ـــــ **قدے** :- (ـــ ق + د ے)(عپ ، تر ، صف،اس ، ج ـــ دي) لوړ قد واله ، دنگ، اوچت ، لاډنگ

ـــــ **قيمته** :- (ـــ قي + م+ تَ)(فپ ، تر ، صف) اوچت قيمت والا ، قيمتي ، د گرانې بيعې.

ـــــ **کتل ، چا ته** :- چا ته د عزت په نظر کتل.

ـــــ **مازيگر** :- (ـــــ ما +زي + گ+ ر)(پ تر ، اس ، ظ)د مازديگر اخرينے وخت ، ماښام ، لنډ مازيگر وخت .(د ځينو په نزد) د مازديگر اولنے وخت.د مازيگر د نمونځ اولنے وخت.

ـــ **مقام** :- (ـــ مَ / مُ + قا + م)(فپ، تر ، اس ، مذ ،ج ـــ ونه / ات) اوچت مقام، لويه درجه.

ـــــ **والے** :- (ـــــ وا + لے)(اس ، مذ ، ج ـــــ لي) اوچتوالے ،دنگ والے ، عزت ، مرتبه ، سربلندي.

د ـــ **فکر خاوند / خښتن** :- د اوچتوخيالاتو او فکرونو خاوند ، د اعلٰی فکر

ځښتن.

**لوړکے** :- (لُ + ړَ+کے)(اس ، صف ، مذ ، ج ــ کي) زور ،فتحه ، (علامت).

**لوړکے** :- (لـو + ړَ+ کـے)(اس ، مـذ ، ج ـــ کـي) ترینګلـی ، تینګـړی ، ترینګړی ، دُورمه ، نل ، چې مېنځ ئې ډک وي.

**لوړکے** :- (ل+ؤ + ړ + کے)(اس ، مذ ، ج ــ کي) د ,, لوړ ، ، تصغیر ، وړوکے لوړ ، وړوکے کوتک. ـ ځوکې والـه لرګے ، چې جاولـه / ژاولـه پرې راجدا کوي.ـ کرندے ، چخلې ، چوخړګے.

**لوړل** :- (ل+و + ړ + ل)(مص) نړېدل. تلل ،کوچ کول ،روانېدل.

**لوړل** :- (لو + ړ + ل)(مص) قسم خوړل ، سوګند پورته کول.

**لوړلے** :- (لو + ړ + لے)(اس ،مف ، ج ـ لي) هغه کس چې قسم ئې خوړلے وي. ـ سوګندي

**لوړنه** :- (لو + ړ + نَ)(حمص) قسم خوړنه ، سوګند پورته کونه.

**لوړنې** :- (ل+و + ړ + ن + ی) د ,,لوړنے ، ، تانیث دے.

**لوړنے** :- (ل+و + ړ +نے)(اس ، صـف ، مـذ ، ج ـــ نـي) پـورتنے ، بـرنے . اوچتوالي سره تعلق لرونکے.

**لوړو** :- (لو + ړم)(صف ، مذ) ډېر لوړونکے ، ډېر قسمونه خوړونکے ، قسم خور

**لوړول** :- (ل+و + ړ + ؤ + ل)(مص) اوچتول ، دنګول ، پورتـه کول ،عزت ورکول ، سربلندي ورکول ، ترقي ورکول، لویه مرتبه ورکول.

**لوړول** :- (لو + ړ + ؤ+ ل)(مص) قسم ورکول ، سوګندي کول.

**لـوړول** :- (لـو + ړ + ؤ + ل)(مـص) نښـتـے یـا چسـپان شـوې ځیـز رابېلـول ، راجداکول د کوم ځیـز نـه ټکړې وغېره راجدا کـول.ـ لکـه : د ونـې پـوټکي لوړول.

**ـــــ پوست** :- ځرمن وښکل ،ځرمن اوباسل ، پوست وښکل.

مخ مې پوست دے په وهل د لورولو

هـم لایق د هر عـــذاب د کــــړولو (حمید)

**لوړوونکے** :- (ل+و + ړ +وو+ ن + کے)(اس ، فا ، ج ــ کي) پورتـه کوونکے ، اوچتـوونکے .ـ پـه مرتبـه وغېـره کښې لويـه ووںکے ، عـزت ورکـوونکے ، سربلنده کوونکے.

**لـوړه** :- (ل+و + ړ)(اس ، مـو ، ج ــــ ړې) د ,, لـوړ ، ، تانیـث دے . اوچـت ځاے ، ډېه ، ډېرۍ.ـ (د جوره / ژوره ضد).

**ـــ جوره / ژوره** :- (ـــ ج/ ژ + و + رَ)(پ تر ، اس ظ) اوچت او ښکته ځاے ، ناهمواره سطح ، اوچته او چیټـه سطح. مجـازاً: ښـهٔ او بـد حالت ، ارام او تکلیف ، اسانه او ګرانه ، تودهٔ سارهٔ مختلف قسم حالات.

**ـــ شا** :- (ـــ شا)(اس، مع) په خېبر کښې د یوې علاقې نوم.

اول جنـــګ د لوړې شا د تهترو وهٔ

چې څلوېښت زره مغل شول تار په تار (خوشحال)

**ـــــ مخه** :- (ــــ م + خَ)(پ تر ، اس ، مـو) سطح مرتفع ، هغـه سیمه چې د نورو سیمو نه اوچته وي.

**ـــــ کښېناستل** :- پـه اوچت ځـاے ، ډېـه ، ډېـه وغېـره کښېناسـتل.ـ مجـازاً: د نورو د جنګ جګړې تماشه کول ، (عموماًدهغې سړي په حقله وئیلے شي. چې فساد هم، هغهٔ جوړ کړے وي.ـ او بیا ځان یوې ډډې ته کړي).

**لوړه** :- (لو + ړَ)(اس، مو ، ج ـــ ړې) هغه ولـه یا خوړ چې ځینې وخت اوچه وي او ځینې وخت په کښې اوبهٔ بهېږي.

**لوړه** :- (لو + ړَ)(اس ، مو ، ج ـــ ړې) قسم ، سوګند.

**ـــ اچول** :- قسم خوړل ، سوګند خوړل.

**ـــــ اچول ، سره** :- پـه خپله کښې یوبل ته قسم خوړل ، په خپل کښې یو بـل لـه قسم ورکول.

**ـــ کول** :- قسم خوړل ،قسم کول.

**لوړه** :- (لو + ړَ)(صف) بوړه ، ډډ اواز ، بې اواز ، بې غږه.

د هجران درازه شپه دې مخ ته راغله

چې لوړه نهٔ کړے جرسه چغار خپل (حسېن)

**لوړه توت** :- (لـو + ړ + تـو + ت)(اس، مـذ ، جم) د توتـانو یـو قسم چې اوږدهٔ اوږدهٔ توتان کوي.

**لوړې** :- (ل+ و + ړې)(اس ، مو ، ج) د ,, لوړه ، ، جمع ده.

**ـــ جورې/ژورې** :- (ـــ ج / ژ+ و + رې) د ,, لوړه جوره / ژوره ، ، جمع ده.

کـــــه ښېٔ راته هزار لوړې ژورې

د زړهٔ کډې به له تانهٔ کړم ستنې زهٔ (حمید)

د ,, لوړه ، جوره / ژوره ، ، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ــــــ جـورې / ژورې پېښـېدل** :- هـر قسم حـالات ، ودرځاربـدل ، اسـانیانې او مشکلات پېښېدل.

**د ـــ نه / ځخه په دو** :- پـه تیزۍ سره روان ، د مجبورۍ نـه / ځخـه پـه تیـزۍ سره په منډه ، په تادۍ کښې ،په عجلت کښې.

**لوړېـدل** :- (لـو + ړ + ړې + د + ل)(مـص) اوچتېـدل ، دنګېـدل ، پـه قد کښـې اوږدېدل.ـ په عزت یا مرتبه کښې اوچتېدل.ـ عزت موندل ، سربلند کېدل.

**لوړېدل** :- (لو + ړې + د + ل)(مص)(ټکړې) جدا کېدل.

**لوړېدنه** :- (ل+ و + ړې + د + نَ)(و ـــ لوړېدهٔ).

**لوړېدنه** :- (لو + ړې + د + نَ)(و ــ لوړېدهٔ) .ـ (ل+ وَ + ړې + د + نَ) ئې هم تلفظ کېږي.

**لوړېدهٔ** :- (ل+و + ړې+ د)(حمص) اوچتېدهٔ ، دنګېدهٔ .ـ په قـد یـا اوچتـوالي کښې زیاتېدهٔ.ـ په عزت یا مرتبه وغېره کښې پورته کېدهٔ.ـ سربلنده کېدهٔ.

**لوړېدهٔ** :- (لو + ړې+ د)(حمص)(ټکړې) راجدا کېدهٔ.

**لـوړېز** :- (لـو + ړې + ز)(صـف ، مـذ) مجـازاً : اواره ګـرد ،خوشـي تشـي سړي ته وائي.

**لوړېزه** :- (کو + ړې + ز)(اس ، مو) د ګنډلو یو قسم.

**لـــوړې** :- (ل+و + ړې)(اس، مـذ ، ج ــــ ړي) اوچتـــوالے ، ترقـــي ، عـــزت ، سربلندي لکه : لوړے دې غوارم.

**لوز** :- (لو + ز)(ع ، اس ، مذ) بادام ، یو قسم متیـائي ده چې د بادام په شکل وي.

**لوز** :- (لو+ز)(اس ، مذ ،ج ـــ ونه)(اصلاً د ,, لفظ ، ، بدل شکل یعنې لوظ دے او لوظ لیکلے شي) قول ، اقرار ، وعده.

**ــــ کول** :- قول اقرار کول ، وعده کول.

**ــــــ ماتول** :- اقرار ماتول ، وعده خلافي کول.

**ــــــ نامه** :- (ـــــ نا+ مَ)(فپ تر،اس ،مو،ج ـــ مې) هغه کاغذ چې په کښې د دوه کسانو یا ډلو قول اقرار لیکلے شوے وي.ـ عهدنامه.

**بې ـــــ (ه)** :- بې وعدې ، وعده خلاف ، په قول اقرار ټینګ نهٔ اوسېدونکے.

**لوز** :- (لو + ز) لینده ، غور کمانه.

چې دا هسې برابر په نښانه ځي

د میرزا غشے د پیر کامل له لوزه (مرزا خان)

**لوزپایه** :- (لو + ز +پا + يَ)(اس ، مو ، ج ــ ئې) اندر پایه ، زینه.

**لوزه** :- (لو + زَ)(اس ، مو ، ج ـــ زې) د ګاځرو وغېره کیـارۍ یـا دوبچې چې د یو ورځ نه اوبهٔ کولے شي.

**لـوزه** :- (لـو + زَ)(اس ، مـو ، ج ـــــ زې) د لمنځې ونــــه چې ځوانـه وي . اوښنته (ف ـــ ارچه).

**لوزه** :- (لو + زَ)(اس ، مو ، ج ــــ زې) د شهدو مچۍ.

**لوزي** :- (لو + زي)(اس ، مو) لوز (لوظ) سره تعلق لرونکے ـ لکه : بې لوزي کول

**لوزے** :- (لو + زے)(اس ، مذ ، ج ــــ زي) دېوال.

**لوزينه** :- (لو + زي + نَ)(ف، اس ، مو) يو قسم متيائي يا حلوا چې په کښې بادام اچولے کېږي.

**لوږ** :- (لو + ګ / ژ)(اس ، مذ) يو قسم غرئيز بوټے دے چې عموماً د اوبو په غاړه کېږي. څاروي ئې نۀ خوري.

**لوږنده** :- (ل + و + ګ / ژ + ن + د)(اس ، مو ، ج ــــ دې) د يو مرض نوم دے چې په کښې د زنانه په ګېډه کښې يو سخت غونډ شان پيدا شي.

**لوږه** :- (ل + و + ګ / ژ) (اس ، مو ، ج ــــ ږې) د يو غرئيز بوټي نوم چې ډېر بدبويه وي.

**لوږه** :- (ل + و + ګ + ژَ) (اس ، مو ، ج ــ ږې) اوږے کېدنه ، ګرسنګي.

**ــــ تنده** :- (ــــ ت + ن + دَ)(پ تر ، اس ، مو ، ج ــ ې ــ ې) اوږےکېدنه او تږے کېدنه ، د خوراک څښکاک ضرورت. مجازاً : د خوراک څښکاک کمے يا نيشتيا.

**ــــ غالبه کېدل ، په چا** :- د لوږې د لاسه بې تابه کېدل. د خوراک د ضرورت له کبله کوم (بد) کار (لکه غلا وغېره) کول.

**لوږې** :- (ل + ؤ + ګې / ژې) د ,,لوږه،، جمع ده. د ,,لوږه،، بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ــــ تندې** :- (ــــ ت + ن + دې) د ,,لوږه تنده،، جمع ده. د ,,لوږه تنده،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ــــ تندي تېرول** :- بغېر د خوراکه او څښکاکه ورځې تېرول. نهرې او بې څښکلو ورځې تېرول. مجازاً : د غريبۍ ، ناداري، سختۍ تېرول.

**د ــــ پولۍ په ډانګ را اړول** :- مجازاً : ډېر زيات اوږے کېدل. (اصلاً د بټ نه چې کومه نينه پولۍ شي او باهر وغورزېږي هغه د لرې نه ځان ته رابښکل)

**د ــــ په ګېډه کښې د منږکانو منډه وهل** :- مجازاً : ډېر زيات اوږے کېدل.

**د ــــ څۀ نه ليدل** :-

**د ــــ نظر نۀ لګېدل** :- مجازاً : ډېر زيات اوږے کېدل.

**د ــــ غابښونه تودول** :- مجازاً : ډېر زيات اوږے کېدل.

**د ــــ (نه/ څخه) چاقوکېدل** :- مجازاً : بې کچه ډېر اوږے کېدل.

**لوس** :- (لو + س)(صف ، اس ، مذ ، ج ــ ان) خوشامندګرے ، سپک او کمينه سړے.

**لوس** :- (لو + س)(اس ، مذ ، ج ــ ونه / ينه) لاس ، دست.

**لوست** :- (لو + س + ت)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) قړ ، اُلتيۍ ، باقيۍ.

**لوست** :- (ل + ؤ + س + ت)(اس ، مذ) د لوستل مصدر نه حاصل مصدر. لوستنه ، قرات ، تلاوت ، (ف ــ خواندن).

**ــــ او ليک** :- (ــــ (تو) پي + ک)(پ تر ، اس ، مذ) لوستنه او ليکنه ، تلاوت او تحرير.

**ــــ ځاے** :- (ــــ (د) زا + ئے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) مدرسه ، سکول. هغه ځائې چرته چې لوستل زده کولے شي. د مطالعې ځاے.

**ــــ کول** :- سبق وئيل. لکه: زۀ په ښهر کښې لوست کوم.

**لوستبوټے** :- (لو + س + ت + بو + ټے)(اس ، مذ ، ج ــــ ټي) يو قسم بوټے دے چې پلنې پاڼې لري ويخ ئې سُور وي.

**لوستځے** :- (ل + و + س + ت + (د) زے) د لوستو ځاے ، د سبق وئيلو ځاے ، مدرسه.

**لوستل** :- (ل + ؤ + س + ت + ل)(مص) تلاوت کول ، وئيل. (ف ـ خواندن).

**لوستل** :- (لو + س + ت + ل)(مص) پاشل ، دېخوا اخوا غورزول يا خورول ، نوستل. (د ن او ل بدلون په پښتو کښې ډېر دے).

کاڼي څښتې ئې اخيستل
و ديوارو ته ئې لــــوستل (خوشحال ، اخلاقنامه)

**لوستل** :- (لو + س + ت + ل)(مص) قې کول ، اُلتيۍ کول ، جارباسل.

**لوستلے** :- (ل + و + س + ت + لے)(اس ، مف ، ج ــ لي) لوستولے شوے ، هغه کتاب ، خط چې مطالعه ئې شوې وي. هغه چې لوستل ئې زده وي. خوانده.

**لوستلے** :- (لو + س + ت + لے)(اس ، مف ، ج ــــ لي) نوستلے ، پاشلے ، دېخوا اخوا غورزولو سره خور کړے.

**لوستلے** :- (لو + س + ت + لے)(اس ، مف ، مذ ، ج ــــ لي) قې کړے ، جاراېستلے.

**لوستن** :- (ل + ؤ + س + ت + ن)(ف پ + تر ، اس) لوستنه ، لولنه ، پاسونه.

قهر مهر دې د وروځيو مينځ کښې وينم
د جبين تختـــــه دې اينبې ؤلوستن ته (خوشحال)

**لوستنه** :- (لو + س + ت + نَ)(و ــــ لوسته).

**لوستون** :- (ل + ؤ + س + تو + ن)(اس ، مذ ، ج ــ ونه) لوستنه ، تلاوت کونه.

**لوستونکے** :- (ل + و + س + تو + ن + کے)(اس ، فا ، مذ ، ج ـ کي) هغه کس چې کوم کتاب يا خط وغېره ولاړوي. تلاوت کوونکے.

**لوستونکے** :- (لو + س + تو + ن + کے)(اس ، فا ، مذ ، ج ــ کي) نوستونکے ، پاشونکے ، دېخوا اخوا غورزوونکے يا خوروونکے.

**لوستونکے** :- (لو + س + تو + ن + کے)(اس ، فا ، مذ ، ج ــ کي) قې کوونکے ، جارباسونکے.

**لوسته** :- (ل + ؤ + س + ت)(حمص) لوستنه ، تلاوت کونه. (ف ــ خواندن ، اُر ــ پرهائی)

**لوسته** :- (لو + س + ت)(حمص) لوستنه ، خورونه ، نوستنه ، پاشنه.

**ــــ کول** :- لوستل ، نوستل ، خورول ، پاشل.

که په هر چا لوسته کړې د خپلو زرو
دا به وائې چې د غــلائې دې دا زر (خوشحال)

**لوسته** :- (ل / لو + س + ت)(اس ، مو ، ج ــــ تې) لوستنه ، تعليم ، زده کړه.

**لوسته** :- (لو + س + تَ)(صف ، مو) سخا.

**لوسته** :- (لو + س + تَ)(و ــــ لاستے).

**لوستے** :- (ل + ؤ + س + تے)(اس ، مف ، ج ــــ تي)(و ــ لوستلے).

**لوستے** :- (ل + ؤ + س + تے)(و ــــ لوستلے).

**لوسي** :- (لو + سي)(حرف) ناڅاپه ، غوري تپه ، ناګهانه.

**لوسيره** :- (لو + سي / سے + ر)(اس ، مو) يو رسم دے چې د کوژدن په وخت د هلک لاس په نکريځو سرۀ کولے شي. نکريځې هم ورته وائي.

**لوش** :- (لُو + ش)(ف ، صف ، مذ ، مو ــ ه) کوږ والے ، هغه سړے چې خولۀ ئې کږه وي. د حوض يا د تالاؤ په وېخ کښې بدبويه ختهه يا لهه.

**لوشاک** :- (ف ، اس) ختې جنې اوبۀ ، هغه اوبۀ چې په کښې نرۍ خته ګډه وي.

(و ــــ لُوش).

**لوشکے** :- (لُو + ش + کے)(اس ، مذ) هغه وريجې / وريژې چې بې غوړو پخې کړے شي او بيا پرې په کرېچۍ کښې سرۀ کړي غوړي اچوي او خوري.

**لوشل** :- (ل و + ش + ل)(مص) د غوا ميښې د غلانځې نه پۍ راوښکل. (ف : دوشيدن).

**لوشن** :- (لو + ش + ن)(انګ ، اس ، جم) محلول ، د زخم وغېره د وينځلو

اوبهٔ چې دوائي په کښې ګډه وي.

**لوشونکے** :- (ل +و + شو + ن + کے)(اس ، فا ، مذ ، ج ـــ کي) هغه کس چې د لنګ څاروي .(لکه غوا مېښه) نه / څخه پئ اخلي.

**لوشه** :- (لو + شَه)(اس ، صف) حرامزاده ، حرامي بچے ،غټې شونډے ، هغه سړے چې شونډې ئې غټې وي.

**لوشے** :- (لو + شے)(و ـــ لوښے).

**لوښتل** :- (ل + و + خ/ش + ت + ل)(و ـــ وړل).

**ګډه ـــ** :- کوچ کول ،لوړل ،په ګډه پسې تلل.

ومې نهٔ سهله هېڅ دهجـــر سختـه

نن مې ګډه د زړهٔ ستا لوري لوښته (حسېن)

نړېدل ،رنګېدل.

هم دې لويو لويو غرونو ته حېران يم

چــې ونهٔ لوښته له وېخه سر غلطان (رحمان بابا)

**لوښتے** :- (لو +خ / ش + تے)(اس ،مذ ،ج ـــ تي) بادام .

**لوښتي** :- (لو + خ / ش + تي)(ا س ،مو) استعمال شوې اوبهٔ ،کنګالې اوبهٔ ، غړونې ، لوښلونې.

**لوښه** :- (لو + خ/ ش)(اس مو ،ج ـــ ښې) عادت ،خوئي ،خصلت.

**لوښے** :- ( لو+ خے /شے)(اس ، مذ ، ج ـــ ښي) ظرف ،د خاورو ، شيشې و مسين وغېره نه جوړ شوے مختلف قسمه څيز چې په کښې د خوراک څښاک څيزونه کښېښودے شي. (اُر : برتن) په لوښي کښې چې څهٔ دي هغه ترې توئېږي (متل) .مجازاً : فطرت ،اصل ،خوئي خصلت ،طبيعت.طنزاً : شرير ،فسادي ، وران کارے.

**لوښي** :- (لو + خي /شي) د ,,لوښے،، جمع ده .د ,,لوښے،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ لرګي** :- (ـــ ل + ر + ګي)(پ تر ، اس ، ج) مجازاً : د کور سامان (بازار ) د بنيادمو پټ اندامونه.

**ـــ لرګي بيلول** :- د کور ساز و سامان د يو بل نه جدا کول ، بېله استوګنه اختيارول.

**لوط** :- (لو + ط)(اس ، مع) د يو لوے پيغمبر نوم .چې د حضرت ابراهيم عليه السلام ورارهٔ وهٔ .حضرت ابراهيم[4] سره د عراق نه کنعان (شام فلسطين) ته تلے وهٔ .هغه د هدايت او وعظ دپاره يو داسې قوم ته لېږلے شوے وهٔ .چې په هغو کښې د نارينه سره د نارينه بدکاري ډېر زياته عامه وه.حضرت لوط[4] ورته ډېر زيات وعظ او نصيحت وکړ.خو دغې قوم د هغهٔ خبره ونهٔ منله.اخر خداے پاک دغه قوم تباه کړو.چې اوس ئې نام نشان نشته.خو نوم له دغې بدکاري (بچه بازي) سره ياد ېږي.متاسفانه ددغې قوم نوم ,,قومِ لوط،، مشهور شوے وهٔ .ځکه دغې بدکاري (اغلام بچه بازي ته هم د ,,قوم لوط،، عمل يا لواطت وغېره وئيلے کېږي .دغه شان دغې قبيح کار سره د لوط غوندې پيغمبر نوم هم اخستے شي.بنائي چې ددې نه احتراز وکړے شي. (بخاري).

**لوطي** :- (لو + طي)(ف ، صف) هغه کس چې نارينه سره بدکاري کوي. بچه باز ، اغلام کوونکے . (نوټ وګوره د لواطت تر لاندې).

**لوظ** :- (لو + ظ)(ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه) قول ، وعده ، عهد ، اقرار (اصلاً د عربي ,,لفظ ،، دے ف په واو بدله شوې ده.د ف او واو بدلون په پښتو کښې ډېر دے).

**ـــ پوره کول** :- اقرار سرته رسول،وعده پوره کول ،قول پوره کول.

**ـــ پوره کېدل** :- اقرار پوره کېدل ، وعده سرته رسېدل ، قول پوره کېدل.

**ـــ په لوظ پاتې کېدل** :- اقرار يا وعده په خپل ځاے پاتې کېدل.په لوظ کښې هېڅ بدلون يا فرق نهٔ راتلل.

**ـــ کول** :- اقرار کول ، وعده کول ، قول ورکول.

**ـــ ماتول** :- وعده ماتول ، وعده خلافي کول ، د قول اقرار نه اوړېدل / اوښتل.

**لوظه** :- (لو + ظَ) د لوظ يو قسم جمع ده .چې عموماً د عدد تورو سره راځي. د ,,لوظ،، بدل شکل چې ځينو مغيره ؤ تورو وغېره سره راځي.

**بې ـــ** :- بې وعدې ، هغه چې خپل قول اقرار نه پوره کوي.بې ژبې / جبې.

**بې ـــ کېدل** :- بې ژبې / جبې کېدل ، د قول اقرار نه اوړېدل ، وعده خلافي کول

**لوظي** :- (لو + ظي)(اس ، مو) د لوظ سره متعلق.

**بې ـــ کول** :- وعده خلافي کول ، د قول اقرار نه ګرځېدل.

**لوع** :- (لو + ع)(ع ، اس) خفګان ، ناراضګي (ظفر)(و ـــ لوعت).

**لوعــت** :- (لــو + ع + ت)(ع ، اس ، مــذ ) د مينــې او عشــق لــه کبلــه د زړهٔ سوځېدنه ، د عشق سوز.

**لوغ** :- (ل + و + غ)(اس ، مذ) د لوښلو عمل ، لوښنه.

**لوغ** :- (لو + غ)(اس ، مذ) لوشل ،رودنه ،رودل ،لوېغ.

سول مر تـــر سپينې ريرې

نه شو خلاص د مور له لوغه (ارزاني)

**لوغړن** :- (لو/لُ + غ + ړ + ن)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) نيم سوے ، چې لوګے په کښې ورګډ معلومېږي.ګنده او غوړ. مجازاً : بدنصيبے ، بدبخته.په بده ورځ.

**ـــ کول** :- نيم سوے کول.بدبخته کول ، په بده ورځ کول ، ورځ بدول. ګنده او غوړ پړ کول.

**ـــ کېدل** :- نيم سوے کېدل ،داسې چې د لوګي اثر په کښې برڅېره وي . بدبخته کېدل ، په بده ورځ کېدل ، ورځ بد بدل ، خيرن پيرن ، غوړ پړ ،ګنده کېدل.

**لوغړول** :- (لُ/لو + غ + ړ + ؤ + ل)(مص) په خاورو يا ايرو کښې اړول يا اړول.

**لوغړېدل** :- (لُ/لو + غ + ړې + د + ل)(مص) په خاورو يا ايرو کښې اوړېدل را اوړېدل. مطلق (په زمکه) اوړېدل را اوړېدل په زمکه د ملاستې په حالت کښې ډډه په ډډه اوړېدل. ځاے په ځاے خوربدل.ځاے په ځاے بغير د مقصد د حاصلولو ګرځېدل او تکليفونه زغمل.خواربدل.

**لوغزه** :- (ل + و + غ + زَ)(اس ، مو ، ج ـــ زې) لنګه (غوا مېښه وغېره) پيه وره

**لوغسنه** :- (ل + و + غ + س + ن)(اس مو) د غوا وغېره پيه ور څاروې د لوشلو په وخت لتې وهنه يا ورانے کونه.

**لوغسه** :- (ل + و + غ + سَ)(و ـــ لوغسې).

د ښهٔ مخ وته له ورايه ځلبلاند شم

لکه ووينې لوغسې تال په سترګو (خوشحال)

**لوغسې** :- (ل = و + غ + س + ې)(اس ،مو) هغه لنګ پيه ور څاروے چې پې لوشلو ته څوک نهٔ پرېږدي .کټاره . لوغسه . عموماً : داسې څاروي ته اول د خوراک څهٔ څيز وراندې کښېږدي چې په خوراک مشغول شي او ورانے نهٔ کوي.

**لوغسے** :- (لو + غ + سے)(اس،مذ،ج ـــ سي) مچ.

ماله خپلو شونډو مه شړه بل لور ته

د حلوا له خوا ته نهٔ درومې لوغسې (خوشحال)

**لوغل** :- (ل + و + غ + ل)(مص) لوشل ، د پيه ور څاروي نه پئ اخيستل.

**لوغنه** :- (ل + و + غ + نَ)(حمص) لوشنه.

**لوغولے** :- (لو + غ + ؤ + لے)(اس ،مف ،مذ ، ج ـــ لي) پــه داســې ايــرو

کښې چې لااور په کښې وي ،اړولې را اړولې .په لوګي ايرو ککړ کړې .
ورو ورو بلول (ظفر).

**لوغونه** :- (ل +و+ غـو + ن)(اس ،مـو، ج ــــــ نې) د پئيـو دلوشـلو لوښــې ، لوټکې يا بالټې وغېره چې پې په کښې لوشلې شي.

**لوغې** :- (ل + و + غې)(و ـــ لوغونه).

**لوغېدل** :- (لـو + غې + د + ل)(مـص) پـه ګرمـو ايـرو کښـې (يعني داسې ايرو کښې چې لاد اور سروټکې په کښې موجود وي) اړېدل را اړېدل . په ايرو يا لوګي ککړېدل . نيم سوے کېدل . د اور لوګے کېدل ، د اور نرے نرے يا پټ پټ بلېدل .په زړۀ کښې غم خوړل.

**لوغېدنه** :- (لو + غې + د + نَ)(حمص) پـه ګرمـو ايرو کښـې يعني داسې ايرو کښې چې لاسکروټې په کښې موجودې وي کوم څيز اړونه را اړونه .په ايرو يا لوګي ککړونه . نيم سورے کېدنه . د اور نرے نرے بلېدل او لوګے کول .په زړۀ کښې دننه غم خوړل.

**لوک** :- (لو + ک)(هـ ، اس ، جم) خلق ،اولس.

بل چې دخول کا مخفي له خلقو
بل چې په تراه وي له واړه لوکه (خوشحال)

**لوک** :- (لو + ک)(اس ، مذ ، مو ـــ ه) پينځ کليز اُوښ ،لوګ.

**لوکاټ** :- (لو + کا + ټ)(اس ، مذ) مشهوره مېوه ، چې په غنچو کښې پېدا کېږي .زيړ نارنجي رنګ لري.

**لوکړ** :- (لو + ک + ړ)(و ـــ لوګړ).

**لوکل** :- (لو + ک + ل)(انګ ، صف) مقامي ، ځائي ، محلي.

**لوکوټي** :- (لو + کو + ټي)(حرف) د مقدار کلمه ده .د لږ کوټي بدل شکل دے .لږ شان.

**لوکوموټو** :- (لو + کو + مو + ټ + و)(انګ ، تر ، اس ، مو) د حرکت کولو يا د خوزېدو مشين لکه ريل ګاډي انجن.

**لوګائے** :- (لو + ګا + ئے)(و ـــ لوګے).

**لوګجن** :- (لو + ګ + ج + ن)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) لوګي وهلے ،هغه څيز چې د لوګي اثر لري.

**لوګر** :- (لو + ګ + ر)(اس ، مع) په افغانستان کښې يوه علاقه،د لوګر ولايت.

**لوګر** :- (لو + ګ + ر)(اس ، صف ،مذ ،ج ـــ ي ،مو ـــ ه) لو کوونکے ، فصل رېبونکے.

**لوګرے** :- (لو + ګ + رے)(اس ،مذ ،ج ـــ ري) لوګر ،لو کوونکے ،فصل رېبونکے

**لوګړ** :- (لو + ګ + ړ)(اس ، مذ) ماله ، هغه تخته کومه چې قلبې پسې تړلے شي او د پټي لوړې ژورې پرې هوارولے شي .منداوو ، کېږ ،لوکړ.

**لوګن** :- (لو + ګ + ن)(صف ، مذ ،مو ـــ ه) لوګي والـه ،لوګجن ، هغه څيز چې د لوګي اثر پرې شوے وي .هغه څيز چې لوګے ترې خېژي.

**لوګول** :- (لو + ګ + ؤ + ل)(مص) داسې بلول چې لمبه ئې نۀ خېژي خو لوګے ترې ووزي .د اور له کبله د څه څيز نه لوګے ايستل.

حاسدان به تل زوال د دولت غواړي
همېشه د لوګوي و ځان ته سپاندې (خوشحال)

ورو ورو پټ په پټه خبره وغېره خورول .پروپېګنډه کول.

**لوګه** :- (لو + ګ)(ه ، اس ،مو ،ج ـــ ګې) بنجره او غېر اباده زمکه ،شړه ، خوشې (ګرځېدنه)(هند : لوګه).

ـــ **ګرزېدل/ګرځېدل** :- خوشې او بېکاره ګرځېدل.

**لوګے** :- (لو + ګے)(اس ، مذ ، ج ـــ ګي) دود ، د اور نه اوچتېدونکې لوخړه.

ـــ **تلل** :- لوګے وتل ،د څۀ څيز نه ، لوګے کول.

دا ئې خط نشونما کاندې له مخه
يا نرے نرے لوګے ځي له څـراغه (حميد)

ـــ **کول** :- کوم څيز داسې بلول چې لمبه ترې نه خېژي ، خو لوګے ترې ووزي .
لکه : سپېلني لوګے کول .(فشاريه کول دے).

ـــ **کېدل د چانه** : د چا نه قربانېدل ، د چا نه ځان قربانول.

**ځان ـــ کول** :- ((د) زا + ن ـــ) ځان قربانول ، خپل ځان صدقه کول، ستې کېدل ، د چانه.

**سپېلني ـــ کول** :- په انګار باندې سپېلني اچول چې لوګے وکړي .دا عمل د نظر نه د بچ کولو دپاره کولے شي .څکه .... د بد نظر نه بچ کول.

**لوګېدل** :- (لو + ګې + د +ل)(مص) لوګے کېدل ، لوګے کول. داسې بلېدل چې لمبه نۀ وي خو لوګے ترې ووزي.

**لوګېدنه** :- (لو + ګې + د + نَ)(حمص) لوګے کېدنه ، د کوم څيز نه داور په وجه لوګے ختنه.

**لولاک** :- (لو + لا+ ک)(عر ، کلمه) که تۀ نۀ وے .دا يو مشهور قول پلو اشاره ده . چې د رسول کريم صلي الله عليه وسلم په حقله وئيلے شي چې لولاک لما خلقت الافلاک (که تۀ نۀ وے نو ما به دا افلاک نه وو پيدا کړي.

د مــــوسٰی عيسٰی کلـه دا صفت وو
د لولاک لغت په دۀ باندې مختص شۀ (خوشحال)

**لولپاند** :- (لو + ل + پا + ن + د)(و ـــ لولپه).

ـــ **کول** :- (و ـــ لولپه کول).

ـــ **کېدل** :- (و ـــ لولپه کېدل).

**لولپانده** :- (لو + ل + پا + ن + دَ) د ,,لولپاند،، تانيث دے.

**لولپه** :- (لو + ل + پ)(صف) بالکل سوځېدلے ، بېخي سوے.

که هر څو ئې په سرۀ اور کښې لولپه کړې
د ياقوت د اوبو ډار د ګـــداز نشتـــه (خوشحال)

مجازاً: ډېر زيات غمجن. مجازاً: ډېر زيات مئين ، ستي.

ـــ **ګرزېدلے/ګرځېدلے ، څۀ پسې** :- ډېرزيات تلاش او لټون کول ،سروهلے بر وهلے ګرځېدل.

**لولکۍ** :- (لـو +ل +ک +ی)(اس ، مـو) د ,,لـولکے،، تانيث دے . اوږۀ چې خواږۀ په کښې ګډ کړي بيا ئې په غوړو کښې سرۀ کړي .او ماشومانو له ئې په پوټلۍ کښې ورکوي.

**لولکے** :- (لـو + ل + کے)(اس ، مـذ ، ج ـــ کي) تـاروګے ، پرپـرکے ، کمبلۍ . (اُر تتلي)

**لولل** :- (ل + و + ل + ل)(مـص ،غېرمسـتعمل) لوستل ،تـلاوت کول ،لوستنه زده کول.

**لولنګر** :- (لـو + ل + ن + ګ + ر)(اس ، صف ،مـذ ،مو ـــ ه) لوے لنګر والـه ، ډېر خرڅ کوونکے ،فضول خرچه ، عياش.

**لولو** :- (لو + لو)(اس ، مو) بازو بند ، کالے دے.

**لولو** :- (لو + لو)(اس) د ماشومانو په ژبه کښې اودۀ کېدنه.

ـــ **کېدل** :- د ماشومانو په ژبه/جبه اودۀ کېدل، څملاستل.

**لولو** :- (لو + لو)(اس ، مذ ، ج ـــ ګان) د لړګو او زړو جامو نه جوړ شوے هغه بت چې زميندار ان د مرغو مارغانو دويرولو دپاره په پټي کښې جوړ کړي .مترس.

**لؤ لؤ** :- (لُو + لُو)(ع ،اس،مذ) مرغلره.

ـــ **لالا** :- (ـــــ لا+ لا)(ع ، تـر ، اس ، مـذ) ډېـره ځلېـدونکې مرغلـره . پړقېدونکې مرغلره.

چې له ډنډه درګوهر نۀ دې کښلي
قيمتي لولو لالا غواړه په يم کښې (خوشحال)

**لولو باتو** :- (لو + لو + با + تو) (اس ، مذ) د جيکو د يوې لوبې نوم دے۔

**لولـول** :- (ل + و + ل + ؤ + ل) (مـص) درس ورکـول ، لوسـتنه ښـودل ۔ سـبق ښـئيل ۔ (د مغرب په ديار کښې مې يو معلم وسيده په مکتب کښې ناست هلکان ئې لولول)۔ (عبدالقادر ،گلدسته)

**لولونه** :- (ل + و + ل + ؤ + نَ) (حمص) درس ورکونه ، د خط لوستل ښودونه ، د لوستنې درس ورکونه۔ (خط وغيره به بل) تلاوت کونه۔

**لوله** :- (لو + ل) (صف) غونډ ،گول مول ،غونډ او اوږد ۔

**ـــ کول** :- غونډول ،غونډارے جوړول۔

**ـــ کش** :- (ـــ ک + ش) (ف تر ،اس ، مذ ، ج ـ ان ، مو ـ ه) د اوبو وغيره د نلونو (پائپونو) کار کوونکے ، پلمبر۔

**لولي** :- (ل + و + لي) (فعل) د لوستل (لولل) مصدر نه /څخه د حال فعل ، تلاوت کوي ، سبق وائي درس ورکوي۔

**لولئ** :- (لو + ل + ئ) (اس ، مو) ډمه ، فاحشه ښځه ، بدچلنه ښځه ،کاسيره ، گډئ ، لنډۍ۔

**ـــ توب** :- (ـــــ تـو + ب) (اس ، مـذ) د لـولۍ کـار ،ډمتوب ،کاسيرتوب بدکاري ، فحش کاري۔

**ـــــ لولۍ** :- (لو + ل + ی) غونډه غونډه ،سره سره۔

سپينه خـولۀ لـولۍ لولۍ

مخ په صابون مينځې چورئ (غاړه)

**لوم** :- (لو + م) (ع ، اس ، مذ) الزام لگونه ،تهمت لگونه، تور پورې کونه۔

**لومړ** :- (لو + م + ب + ړ) (اس ، عدد) اولنے ، اولين ، اول۔

**لـومړ** :- (لـو + م + ب + ړ) (اس ، مـذ ، ج ـــ ان) مشـهور ځناور ، روبـاه ، تروړۍ۔ (اُر ۔ لومړي)۔

**لومړه** :- (لـو + م + ب + ړَ) (اس، مـو ، ج ــــ ړې) د ,, لـومړ ،، تانيث دے ۔ تـروړۍ ۔ (عـام طـور سره ,,لومړه ،، استعماليږي ۔لومړ خاص د نر د ښودنې دپاره استعماليږي)۔

**لومت** :- (لو + م + ت) (ع ، اس ، مذ) ملامته ، تور ، الزام۔

**لومړنۍ** :- (لو + م + ړ + ن + ی) د ,, لومړنے ،، تانيث۔

**لومړۍ** :- (لو + م + ړ + ی) د ,, لومړے ،، تانيث۔

**ـــ خور** :- (ـــ خو + ر) (پ ، تر ، اس ، مو) د ربيع الاول مياشت ، اولنۍ خور ، د دولسم مياشت۔

**لومړنے** :- (لو + م + ړ + نے) (اس،عدد ،مذ ،ج ــــ نې) اولـــنے ،اول ، پـــه وړومبي سر کښې۔

**لومړے** :- (لو + م + ړ + ے) (اس ،عدد ،مذ ،ج ـــ ړي) لمړے ،اول ،اولنے۔

**لومشر** :- (لو + م + ش + ر) (پ تر ،اس ،مذ ،ج ـ ان) لوے مشر ،افسر۔

**لومکه** :- (لـو + م + ک) (اس ، مـو ، ج ـــ کې) د ,, لومـه ،، تصغير دے ۔ وړه لومه دام چې د وړو مرغو د نيولو دپاره استعماليږي۔

**لومني** :- (لـو + م + ني) (اس ، مـو) لـوئي ،تکبر ،ځان ته ځۀ وئينه ، خودبيني ، وياړ۔

**ـــ کول** :- لوئي کول ،غرور ،تکبر کول ،ځان ته ځۀ وئيل ،وياړ کول۔

**لومه** :- (لو + مَ) (اس ، مو ، ج ــــ مې) د اس د لکۍ د وېښتو نه جوړ شـوے دام چې په کښې مرغۍ نيسي۔

**ـــــ کښېښـودل ،چاتــه** :- دام کښېښـودل ، چـاتـه پټ سـازش کـول، د چا د نښلولو دپـاره د فريب نـه کار اخيستل ، پرکه کښېښودل چاته۔

**لومی** :- (لو + م + ی) (و ـــ لومه)۔

**لوميا** :- (لو + م + يا) (اس،مو،ج ـ گانې) دليل،حُجت ،روڼونے۔

**لون** :- (لو + ن) (ع ،اس ،مذ ،ج ـ ونه / الوان) رنگ ،ظاهري شکل۔

**ـــ لون** :- (ـــ لو + ن) (صف) رنگ رنگ ، رنگ په رنگ ، قسم قسم۔

چې په باغ کښې رنگا رنگ ميوه پيدا شي

لـــون لــــون ئې مزه وي په مـــــــذاق (خوشحال)

**لونبړه** :- (لو + م + ب + ړَ) (و ـــ لومبړه)۔

**لونټه** :- (لو + ن + ټَ) (اس ، مو ، ج ـــ ټې) هغه چې لکۍ ئې پرېکړې شوې وي۔بې لکۍ ، غوځ لکۍ۔

**لونټے مونټے** :- (لو + ن + ټے + مو + ن + ټے) (صف) هغه چې لکۍ او غوږونه ئې پرېکړې شوي وي۔سونټے مونټے۔

**لونج** :- (لو + ن + ج) (انگ ،اس ،مذ ،ج ـ ونه) د ارام کولو ځاے ، د ستړيا د اېستلو ځاے ، په کور يا په هوټلونو وغيره کښې هغه ځاے چرته چې دمه کولے شي۔

**لونځ** :- (لو + ن + د ز) (اس ،مذ ،ج ـ ونه) نمونځ ،نماز۔

**لوند** :- (لو + ن + د) (صف ،مذ) خوشت ،خُشت، په اوبو نمجن ، تر۔

**ـــ خوشت/ خشت** :- (ـــ خُ + ش + ت) (پ تر ،صف) دواړه هم معنٰی لفظونه دي ۔دويم لفظ د تاکيد دپاره ورسره راځي ۔يعني ډېر زيـات لوند ، په اوبو جب جوب۔

**ـــ خيشت** :- (ـــ خي + ش + ت) (و ـــ لوند خوشت)۔

**لوندول** :- (لو + ن +د+ ؤ +ل) (مص) خوشتول،په اوبو سره تر کول۔

**لوندونه** :- (لو + ن + د + ؤ + نَ) (حمص) خوشتونه ،تر کونه ،نمجن کونه۔

**لوندوونکے** :- (لو+ ن + د+ وو+ ن + کے) (اس فا ،مذ ،ج ـ کي) خوشتوونکے ، اوبو سره نمجن کوونکے ، تر کوونکے۔

**لونده** :- (ل + و + ن + د) د ,,لوند ،، تانيث دے ۔خوشته ، پـه اوبـو نمجنه يا تره۔

**ـــ خوشته / خشته** :- (ـــ خُ + ش + تَ) (پ تر ، صف ،ج ـ ې ـ ې) دواړه هم معناالفظونه دي ۔دريم لفظ د تاکيد دپاره راځي ۔ ډېره زياته لونده ،په اوبو کښې تر په تر،په اوبو جبه جوبه۔

**لوندے** :- (لو + ن+دے) (و ـ لاندے) (نور الفاظ هم د ,,لاندې ،، تر لاندې وگورئ)۔

**ـــــ بوندے** :- (ـــ بو + ن +دے) (و ـــ لاندې باندې)۔

**لوندېدل** :- (لـو + ن + دې + د +ل) (مـص) خوشـتېدل ، پـه اوبـو وغيـره سره تـر کېدل، نمجن کېدل۔

**لوندېدنه** :- (لـو +ن + دې + د + نَ) (حمـص) خوشـتيدنه ، پـه اوبـو وغيـره سره تر کېدنه

**لوندېـــدونکے** :- (لـــو + ن + دې + دو+ن+ کـــے) (اس ، مـــذ ، ج ــــ کـــي) خوشتيدونکے ، نمجن کېدونکے ،تر کېدونکے۔

**لونډ** :-(ل + و + ن + ډ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) ناوادۀ کړے زلمے، مجرد سړے ، مجازاً خوشے او بې کاره سړے۔

څوک د حج، څوک د تلقين څوک دمکتب شول

يو خـــــوشحال په واړه خلقو کښې لونډ دے (خوشحال)

**ـــ توب** :- (ـــ تـو + ب) (پ تر ،اس ،مذ) د لونډ حالت ، مجرد تـوب ، اواره گردي ، خوشے گرځيدنه۔

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے) (و ـــ لونډ توب)۔

**لونړ** :- (ل + و + ن + ډ + ر) (و ـــ لونډ)۔

**لونړ** :- (ل + و + ن + ډ + ر) (انگ ، اس ، مذ ، جم) يو قسم خوشبوداره تېل ، چې په جامو وغيره لگولے شي۔

**لونړه** :- (ل + و + ن +ډ + رَ) د ,, لونړ ،، تانيث دے۔

**لونډه** :- (ل +و + ن + ډَ) د ,, لونډ ،، تانيث دے۔

**لوڼ** :- (لو + ڼ)(هـ ، هـ ، مذ) مالګه، نمک.

په عمل کښې اخلاص هسې معلومېږي

لکـــــه خلط لـه ښه طعام سره لوڼ کړې (یونس)

(هند : لوڼ).

**لوڼه** :- (لو + ڼَ)(اس ،مو،ج) د ,, لور ،، جمع ده.

**لونګ** :- (ل + و + ن + ګ)(اس، جم) د ګرمي مسالې د یوې ونې ګل. قرنفل ، دا د رنګه تور نرے ډانډے لري. په سر کښې ئې د ګل شکل وي ډېر خوشبویه څیز دے. پخوا به زنانه ؤ ترینه همېل هم جوړاوۀ. د غوږ او د پوزې په سوري کښې هم کښېښودے شي.

راؤړه لونګ چې لونګین درته تیار کړمه

هله به دې یار کړمه (لوبه)

یو قسم د پوزې کالے.

مرصع ښسر د نور لري په پوزه

اکتفا په لور لونګ کا هغه یار (خوشحال)

**ـــــ بوټے** :- (ـــــ بو + ټے) د لونګو بوټے ، هغه بوټے چې ګل ئې لونګ وي. (و ـــــ لونګ) د قرنفل ونه.

**لونګي** :- (ل + و + ن + ګ + ي)(اس ، مو) د وریجو/ وریژو یو خوشبویه قسم.

**لونګي** :- (لو + ن + ګ + ي)(اس ، مو) ریښمین پټکے. ریښمین څادر چې په اوږو اچولے شي.

**لونګین** :- (ل + و + ن + ګي + ن)(اس،مذ ، ج ـــــ ونه) د لونګو نه جوړ شوے همېل ، چې پخوا به زنانه ؤ په غاړه کښې اچاوۀ.

کښېنه په انګڼ کښې مخامخ چې درته ګورم

تور لونګین دواړه چنډڼ هار په سینه ټال کړه (خوشحال)

**لونل**:- (لو + ن + ل) لوستل ، پاشل ، لوستل.

**لونم** :- (لو + ن+ م)

**لوني** :- (لو + ني)(فعل) د لونل مصدر نه / څخه د حال فعلونه.

هغـــه تېر یاران به بیا ببرته رانشي

که په سر باندې رانولم تورې خاورې (خوشحال)

**لونودل** :- (لو + نو + د + ل)(مص) نوستلے کېدل ،پاشلې کېدل ،(و ـــ لونل).

**لونه** :- (لـو + نَ)(اس ، مـو ، ج ـــ نې) مشهوره دانه چې په بدن راخېژي. سینجکی ، ښنځه ، شلنه ، دمبله ، دنبل ، تنکی.

**لوني** :- (لـو + نـي)(اس ، مع) د سړبني پښـتنو یـوه لویـه قبیلـه ده پخـوا پـه افغانستان کښې اوسېدل. وروستو د موجوده پاکستان ځینو علاقو تـه را وخوځېدل. د دوي لوئې قبیلې دا دي. رکهنوال درګ زئ ، پالاؤ ، دریازئ او عمرزئ.

**لونېدل** :- (لو + نې + د + ل)(مص) نوستلے کېدل ، پاشېدل.

**لووار** :- (لو + وا + ر)(اس ،مذ ، ج ـــ ان) لوهار ، اهنګر ، پش ، ګګر.

**لووړه** :- (لو = و + ړَ)(پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ ړې) لوز ، قول ، تړون ، عهد.

**لووړے** :- (لـو + ؤ + ړے)(اس ، مـذ ، ج ـــ ړي) هغـه څیز چې قسم پرې خوړې شي بزرګ ، ولي الله.

**لوول** :- (لـو + ؤ + ل)(مـص) ګـواهي لـل ، ګـواهي ورکـول ، شاهدي کـول . عموماً ,, د شاهدي ،، لفظ هم ورسره راځي. یعني شاهدي لوول.

**لوول** :- (لو + و + ل)(مص) غورزول ، اچول.

چې په تخت کښېنوي دے دے

چې له تخته لووي ، دے دے (خوشحال فضل نامه)

**لوول** :- (ل + وَ + ؤ + ل)(مص) لو کول ، فصل وغېره رېبل.

**لوونه** :- (ل + وَ + ؤ + نَ)(حمص) لو ، د فصل رېبنه ، لو کونه.

**لووے** :- (لو + وے)(اس ، مذ ، ج ـــ وي)ګواه ، شاهد.

**ـــــ غوښتل** :- ګواه غوښتل ،شاهد غوښتل.

**لوه** :- (ل + وَ)(اس ، مو ، ج ـــــ وې) د ګډو یو مرض ، د ګډو سل.

**لوه** :- (لو + ه).

**لوهه** :- (لو + هَ) اشتها ، خواهش ، هسه.

**ـــــ تلل** :- (و ـــــ لوه نۀ پاتې کېدل).

**ـــــ نۀ پاتې کېدل** :- خواهش یا اشتها نۀ پاتې کېدل.

**لوهانه** :- (لو + ها + نَ)(اس ، مع)دا ډېره لویه قبیله ده چې درې لوئې ښاخونه لري یعني میاخېل ، دولت خېل او تتـور. ځینې خلق د لوهاني نوم ټول پاونده اولس دپاره استعمالوي. خو دا درسته نۀ ده دا ځان له درې قبیلې دي.

**لوهټ** :- (لو + هـ + ټ)(و ـــ لوېټ).

**لوهړ** :- (لو + هـ + ړ)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د یوې ونې نوم. چې نارنجي ګلونه کوي.

د لوهړ ګلونه ښۀ دي تر نلګوسه

ولې بیا چرې لوهړ چرې نلګوس (خوشحال)

**لوهړه** :- (لو + هـ + ړَ)(اس ، مو ، ج ـــ ړې) لوخړه ، ګورلوګے.

**لوهه** :- (لو + هَ)(و ـــ لوه).

**لوهي** :- (لو + هي)(صف) اشتها لرونکے.

دا بد لوهي نوس دې موړ نشو په بدو

کـــه هر څو دې ایله پرېښوې دهشته (حمید)

(د بمبی نسخه،زړه پانګه)

**لوهېدل** :- (لو + هې + د + ل)(و ـــ لوئېدل).

**لوي** :- (ل + وَ + ئ)(اس ، مو) تُوره ، شمشېر.

**لوئ** :- (ل + ؤ + ئ)(اس ، مو) د لو مزدوري ، د لو ګري حق.

**لوئي** :- (لو + ئي)(اس جم) شنې پخې چنې.

**لوے** :- (لو + ئے)(صف ، اس ،مذ ،ج ـــ ان) مشر، پـه عمر کښـې زیـات . سردار ، په مرتبه کښې زیات.

**ـــــ اختر** :- (ـــ ا + خ + ت + ر)(پ تر ، اس، مذ ، ج ـــ ونه) د قربانی اختر ، د حج د میاشتې اختر ، عیدالاضحیٰ.

**ـــــ استاد** :- (ـــ اُ + س + تا + د)(پ تر، اس ،مذ،ج ـــ ان) مشر استاد ، هېډ ماسټر ، صانع جوړوونکے. خدا ے پاک ، لوے صانع.

عجب لویه کارخانه ده

چې پېدا کړه لوے استاد (خوشحال)

**ـــــ ځوان** :- (ـــــ (د) زوا + ن)(اس ، مع)د شېخ عبدالقادر جیلاني لقب.

**ـــــ څښتن** :- (ـــــ (ت) س +خ/ش+ ت+ ن).

**ـــــ تښتن**:- (ـــــ ت + خ / ش ـــــ)(پ تر ، اس ، مذ) لوے مالک ، خدا ے پاک

**ـــــ خدائے** :- (ـــــ خ + دا + ئے)(پ تر ،اس ، مذ) الله تعالیٰ ،خدا ے پاک.

**ـــــ ډنډ** :- (ـــــ ډ + ن + ډ)(پ تر ،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) جیل(جهیل).

**ـــــ سرے**:- (ـــــ س + رے)(پ تر ، اس ، مذ) په مرتبه ، قدر وغېره کښې د نورو نه زیات سرے. زیاتې مرتبې ،مقام ،قدر واله.

**ـــــ والے** :- (ـــ وا+ لے)(اس، مذ ، ج ـــ لي) لوے کېدنه ،لویي ،تکبر، عظمت ، بزرګي ، مشري ، سترتوب.

**لوئېدل** :- (لو + ئې + د + ل)(مص) د وړوکي حالت نه لوے حالت ته بدلېدل

، پـه عمـر قـد قامت وغېـره کښـې زیاتېـدل ، سـتر کېـدل ، وده کـول ، نشوونما موندل ، لوے کېدل.

**لوے** :- (ل + و ے) (اس، مذ ، ج ــــ ي) هغه سورے چې کوټې په چت کښې د لوګي د وتو دپاره جوړولے شي.

**لوے** :- (ل + و ے) (اس ، مذ ، ج ــــ وي) د لوګي تورکے.

**لوے** :- (ل + و ے) (اس ، مو) لنګ څاروے ، پیه ور څاروے.

**لوے** :- (ل + و ے) (اس ، مذ ، ج ــــ و ے) د توري سر.

هسې زۀ په څنګ کتو د ترکو غوغ کړم

لکــه ولګي رسا د تــــــوري لوے (حمید)

**لوے** :- (ل + و ے) (اس ، مذ ، ج ــ ي) لوګر ، لوګرے.

**لویال** :- (لو + یا + ل) (صف ، مذ ، مو ــ ه) خیالي عاشق ،عاشق.

بستره ګول کے ځي لویال

تر ماسود من بولي بازار (غاړه)

**لویان** :-(لـو + یـا + ن) (اس ، مذ ، ج ، مـو ــــ لویـانې) د ,, لـوے ،، جمع ده . لوے خلق ،مشران ، غټ خلق.

**لوېټ** :- (ل + وې + ټ) (اس ، مذ ، ج ــــ ان) د یخو علاقو د یوې مرغۍ نوم دے وائي چې د دې مرغـۍ یـوې بلې مرغۍ سره ، چې جیجي نومېږي مینه ده ، او دواړه د یو بل نه /څخه نۀ جدا کېږي . د ځینو خیال دے چې لوېټ او مرغ زرین دواړه یو څیز دے.

مګر مرګ ئې په ارمان و بله جوړ کا

د جیجي جدائي نشته د لوېټــــه (خوشحال)

**لوېدل** :- (ل + وې + د + ل) (مص) پـرې وتـل ،غورزېـدل .ثابتېـدل . (ف) لکه مفید لوئېدل ، فائده مـن ثابتېدل ، د اوچت مقام یـا مرتبې نـه غورزېدل. اخلاق خرابېدل

**ارزان ـــ** :- (ا + ر + زا + ن ـــ) ارزان پرې وتل ،ارزان (کم بیعه) ثابتېدل.

**نمر ـــ** :- (ن + م + ر ـــ)

**نور ـــ** :- (ن + و + ر ـــ) د نمر / نور ډوبېدل.

**لوېدلے** :- (ل + وې + د + لے) (اس مف ، ج ــ لي) پرېوتلے ،غورزېدلے . د اوچت مقام یا مرتبې نه ښکته را غورزېدلے . په مصیبت یـا افـلاس کښې ګېر شوے.

**لوېدنه** :- (ل + وې + د + نَ) (حمص) غورزېدنه ،پرېوتنه. د لوړ مقام یا مرتبې یا حالت نه ښکته راغورزېدنه. د اخلاقو په لحاظ سره غورزېدنه.

**لوېدون** :- (ل + وې + دو + ن) (اس ، ظر) د لوېدو ځاے ، هغه ځاے چرته چې یو سیند سمندر ته ورکوزېږي.

**لوېـدونکے** :- (ل + وې + دو + ن + کـے) (اس ، فـا ، ج ــ کـي) پرېوتـونکے ، غورزېدونکے

**لوېدۀ** :- (ل + وې + د ) (و ـــ لوېدنه).

**لوېدیځ** :- (ل + وې + دي + (د) ز ) (اس ظر) د لوېدو ځاے ، خصوصاً د نمر / نور د غورزېدلو ځاے . مغرب.

**لوېدیځه** :- (ل + وې+ دي + (د) ز ) (اس ، مو) د لوېدیځ مؤنث ، مغربي.

**ـــ نړې** :- (ـــ ن + ړ + ئ)

**ـــ دنیا** :- (ـــ د + ن + یا ) (پ تر ، اس ، ظر) مغربي دنیـا ، د یـورپ او د امریکې ملکونه.

**لوېرند**:- (ل + وې + ګ/ ژ + ن+ د ) (اس ، مذ ) غورزېدنه.

**لوېرند** :- (ل + وې + ګ /ژ + ن + د ) (صف ، مـذ ، مـو ـــ ه ) مفت خـور ، طفیلي.

**لوېرنـده** :- (ل + وې + ګ/ ژ + ن د ) (اس ، مـو ، ج ــ دې) د ماشـوم دغوړونـو دپاسه ځاے د غوړونو او د تندي تر منځه پوست ځاے ، تندرکے ، تېک ، رونګه.

**لوېرنـدے** :- (ل+و ے + ګ/ژ + ن + د ے) (اس ، مـذ ، ج ـــــ دي) رګ (چې وینې په کښې ګرځي) شریان.

**لوېشت** :- (ل + وې + ش + ت) (اس ، مو ، ج ـــ تې) لېشت ، د کټې ګوتې د سر نه د قچې ګوتې تر سر پورې کچ ، بالشت.

**ـــ کول** :- (و ـــ په لوېشتو کول).

**لوېشتکی** :- (ل + وې + ش + ت + ک +ی) د ,,لوېشتکے ،، تانیث دے.

**لوېشتکے** :- (ل + وې + ش +ت +کے) (صف ، اس ، مذ ، ج ـ کي) هغه چې قد ئـې یـو لوېشـت (لېشـت) وي .مجـازاً : منـدرے ، پـس قـده ، سـړے لېشترنګ.

**لوېشتو** :- (ل + ې = ش + تو) د ,,لوېشتے ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي

**په ـــ کول** :- په لېشتو کچ کول ، په لېشتو اوږدوالے معلومول.

**لوېشتول** :- (ل + وې +ش + ت + ؤ +ل) (مص) (و ـ په لوېشتو کول).

**لوېشـتونک** :- (ل + وې+ ش + تـو + ن + ک) (اس ، مـذ ، ج ــ ان) لوېشـت قـد واله ، مندرے ، پست قامت.

**لوېشتینک** :- (ل + وې + ش + تي + ن + ک) (و ـــ لولېشتکے).

**لوېشل** :- (ل + وې + ش + ل) (و ـــ لوشل).

دا په خم ختلے غوا که هر څو لوېشي

سیم و زر به ئې حاصل نۀ کړې له لوېغه (خوشحال)

**لوېښت** :- (لو + ئ + خ / ش + ت) (اس مذ) لوئېدنه ، لوے کېدنه ، وده کونه لکه : د نباتاتو لوېښت.

**لوېښتونک** :- (ل + وې + خ/ش+ تو + ن+ک) (و ـــ لوېشتکے).

**لوېغ** :- (ل + وې + غ) (اس ، مذ ) لوشنه ، لوغنه.

دا په خم ختلے غوا که هر څو لوېشي

سیم و زر به ئې حاصل نۀ کړې له لوېغه (خوشحال)

**لوېغل** :- (ل + وې + غ + ل) (و ـــ لوغل).

**لوېګند** :- (ل + وې + ګ + ن + د ) (و ـــ لوېرند).

**لوېګنده** :- (ل + وې + ګ + ن + دَ ) (و ـــ لوېرنده).

**لوېلاول** :- (ل + وې + لا+ ؤ+ ل) (مص) (و ـــ لولاول).

**لوئ لوئ** :- (ل + و + ئ+ ل + و+ ي) (صف) زار زار ،په غټو غټو ، د ژړا / جړا دپاره راځي.

**ـــ ژړا / جړل** :- زار زار ژړل / جړل ، په غټو غټو اوښکو ژړل / جړل.

**لوے لوے** :- (ل + و ے + ل + و ے) (و ـــ لوئ لوئ).

**لوئنات** :- (لو + ئې + نا + ت) (پ تر ،اس ،مذ ، ج ـــ ان) نائب الحکومت.

**لوینه** :- (ل + وي / وې + نَ) (اس ، مذ ، ج ـــ نې) دام ،لومه ، د مرغـو د نیولـو یو قسم لومه.

**لوینه** :- (لو + ئي + نَ) (اس مو ، ج ـ نې) لوئي ، تکبر ، غرور.

**لویول** :- (لو + ئ + ؤ + ل) (مص) د وړوکي حالت نـه لـوے حالت تـه بـدلول ، سترول ،پالنه کول ، پرورش کول. نشوونما ورکول ، عزت ورکول.

**لویه** :- (لو + ئ) (اس ، مو ، ج ــ ئې) د ,, لوے ،، تانیث دے.

**ـــ جرګه** :- (ـــ ج + ر + ګَ) (پ تر ، اس ، مو ، ج ــ ګې) هغـه جرګـه چې پـه کښې ګڼ کسان شامل وي . (ف) هغـه جرګه یا کانګرېس چې پـه کښې د ملک د هرې علاقې غړي شامل وي.

**ـــ غاړه** :- (ـــ غا + ړ) (پ تر ، صف) د اوچت اواز ، په زوره غږ / ږغ.

**ـــ ورغ** :- (ـــ و + ر + (د) ز ) (پ تر ، اس ، مذ ) هغه ورغ چې د نورو ورځو

نه اوړده وي. مجازاً د قیامت ورځ.

**ـــــ لار** :- (ــــلا + ر)(پ تر، اس، مو، ج ـــ ې ـــ ې) پلنه او عامه لار چې عام اولس پرې ځي راځي. شاهراه ، لوی سړک ، مجازاً د مرګ لار.

**لويي** :- (لو + يي)(اس ، مو ، ج ـــــ ئې) تکبر ، غرور ، لوی والی، بزرګي ، عظمت ، سترتوب (ه) برغد وړمن شال.

**ـــــ په سر ماتېدل** :- د غرور اړولی نتیجه ختل.

**ـــــ غوښتل** :- عزت غوښتل ، د عظمت خواهش لرل ، ستر والی غوښتل.

**ـــــ کول** :- تکبر کول ، غرور کول.

**لـه** :- (لَ)(حرف) د جار توری دی . د ,,نه،، ,,څخه،، ,,دپاره،، ,,تر،، ,,پوری،، معنې ورکوي . لکه : له پېښوره راغلم ، تاله راشه . (اصلاً د ,,لره،، مخفف دی . په ځینو قبیلو کښې په ,,د،، بدلېږي).

**ـــــ پوسته وتل** :- غتېدل ، څربېدل ، خمټ کېدل.

**ـــــ جړه / ويخه ايستل** :- بېخي ایستل ، بوښتې او ښکل ، نوغی نه پرېښودل.

**ـــ ځانه** :- (ــ(د) زا + نَ)(پ تر، تف) له خپله ځانَ ، له خپل عمله.

لکه : که ورانه ده له خانه ده (متل). د خپل سوچ او فکر نه / څخه د خپل دماغ نه / څخه جوړه کړې .... (خبره وغېره).

لکه : یوه واوري سیل له ځانه جوړې کړي.

**ـــــ رويه** :- (ــــــ رو + يَ) له مخه ، له سببه ، له وجهې ، د مطابق ، په بنا.

**ـــــ سره** :- (ــــ س + ر)(تف) د سرنه ، د اول سرنه . بېخي ، بالکل ، هېڅو ، هېڅکله

**ـــــ سره نيول** :- د اول سره شورو (شروع) کول . د چا د زړه راز معلومولو دپاره داسې سوال کول چې لکه دغه راز ویونکي ته معلوم وي . ځکه نو مخاطب ورته د زړهٔ راز یا غلا ووائي . عموماً د سره نیول وائي.

**ـــــ ښکې** :- (ــــ خ / ښ + کې)(و ـــ له لاندې).

**ـــــ ښهٔ مرغه** :- (ــــ خ/ ش + م + ر + غَ)(پ تر ، حرف) د خوش فهمۍ نه / څخه . خوش بختۍ نه / څخه.

**ـــــ ښې توښې ايستل** :- بې کاره کول ، له کاره ایستل ، د هېڅ کاره نهٔ پرېښودل

**ـــــ ښې وتل** :- بې کاره کېدل ، له کاره وتل.

**ـــــ کوم** :- (ــــ کُ + مَ)(کلمه استفهام) د کوم ځای نه/ څخه ، د چرته نه/ څخه.

**ـــــ کوره** :- (ــــ کو + ر)(پ تر ، اس ، ظر) د کور نه / څخه.

له کوره کرم دینه ، تر بازاره کرم دینه (متل).

**ـــ لاندې** :- (ــ لا + ن + دې) د لاندې نه / څخه ، د ښکته نه / څخه.

**ـــــ لرې** :- (ـــ لې + رې)(اس ، ظر) د لرې نه / څخه، د لرې ځای یا فاقلې نه / څخه.

**ـــ مخه** :- (ــــ م + خ)(اس ، ظر) د مخې نه / څخه ، مخامخ نه / څخه . د لحاظ ، د خاطره ، د خاطر نه/ څخه.

**ـــــ مخه تېرېدل** :- مجازاً بدلحاظي کول ، مخ لحاظ نهٔ کول ، سپین سترګ توب کول (عموماً د نفي په طور راځي).

**ـــــ واره** :- (ـــــ وا + رَ)(پ تر ، تف) په یو ځل ، نا څاپه تېول ، له / د سېلمې مخې سره ، سمدستي ، فوراً ، زر.

**ـــ ورا** :- (ــــــ و + را).

**ـــ ورايه** :- (ــــ و + را + يَ)(تف) د مخې نه / څخه ، د اول سر نه / څخه د اګاهو نه / څخه . د لرې نه / څخه . لکه : میاشت له وراهي معلومېږي.

**ـــ يوه لبه** :- (ــــ ي + و + ل + بَ)(پ تر ، تف) تماماً ، ټول په جمع ، د هېره ، له یوه مخه.

**لهار** :- (ل + ها + ر)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) لهر ، چپه ، موج.

په بارخو مې اوښې دروميږي لاړې لاړې
چې په زړهٔ وریشي له عمه لهارونه (بابو جان)

**لهار** :- (لُ/ لو + ها + ر)(اس ، مذ ، ج ـ ان) د وسپنې کار کوونکی ، لُوهار ، اهنګر

**لهب** :- (ل + هـ ، ب)(ع ، اس ، مذ) لنبه ، شعله ، هغه لنبه چې لوګی په کښې بېخي نهٔ وي.

**لهجوي** :- (ل + ه + ج + وي)(عف ، تر ، صف) لهجې سره تعلق لرونکی.

**لهجه** :- (ل + ه + جَ)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ جې) ژبه / جبه ، د ژبې څانګه ، (انګ : دایالېکټ) تلفظ ، تکلم ـ د خبرو اترو انداز ، د ګفتګو طور طریقه ، د اواز زېر و بم ، د کلام طرز ـ د اواز لحن ، خوش اوازي ، (یا بدغږي) ، سُر.

**پسته ـــــ** :- (پ + س + تَ ــــــ).

**خوږه ـــــ** :- (خ + و + ګ/ ژ ـــــ).

**نرمه ـــــ** :- (ن + ر + مَ ـــــ) د ټولو مطلب پسته او خوږه ژبه یا الفاظ دي.

چې په بل باندې بد نهٔ لګي.

**لهذا** :- (ل + ها + ذا)(ع ، حرف) له دې کبله ، له دې سببه ، له دې وجهې ، نو.

**لهر** :- (ل + هـ + ر)(ه ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) چپه (د اوبو) موج.

چې بهار شو د ښادۍ
زر پرې وخوت د غم لهر (مرزا خان)

د سرور یا د مستۍ موج.

**ـــــ راپورته کېدل** :- چپه راپورته کېدل ، خواهش یا هسه را ولاړېدل ، خیال راپیدا کېدل.

**ـــــ لهر** :- (تف) چپه په چپه ، چپې چپې.

خوار خوشحال ئې لکه خس هسې لاهو کړ
چې د عشق سېلاب راوخوت لهر لهر (خوشحال)

**لهړ** :- (ل + هـ + ړ)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د دوهٔ غرونو تر مېنځه لوی ارت پلن جور/ ژور ځائې . لویه کنده ، ګرهچ.

**لهنګ** :- (ل + هـ + ن + ګ)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ډېر زیات غم ، الهنګ.

چې په څنګ کوي کاږهٔ کاتهٔ په څنګ ځي
زړونه غوغ پسې لــــه غمه په لهنګ ځي (بېدل)

**لهو** :- (ل + هـ + و)(ع ، اس ، مو) عبث ، خوشې ، بې فائدې.

**لهه** :- (لَ + هـَ)(اس ، مو ، ج ـــ هې) د کوهي وغېره په وېخ کښې اوبو نرۍ پسته ختېه . د سېلاب راؤړې خاوره چې یو تهه ئې جوړه شي.

**لهه جن** :- (ل + هـ + ج + ن)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) لهې واله ، هغه ځای چې لهه پرې پرته وي.

**لئيم** :- (ل + ئي + م)(ع ، صف ، مذ ، مو - ه) شُوم ، کنجوس ، بخیل . کمینه ، رذیل

دا دانش چې د هندو دسمان حساب دی
کــــه تــــهٔ دا دانش دانش ګڼې لئیم ئې (خوشحال)

**لې** :- (لَی) د کوم مائع څیز د تل حصه ، دُرد.

نن د سرو لبانو مې و مارا
لوغړن یم دا د میولی و ما را (احمدشاه ابدالي)

**لي** :- (لِي)(فعل) د ,,لل،، مصدر نه / څخه د حال فعل . لکه : ستا دا زېړ تبنتبدلی رنګ په تا شاهدي لي.

**ليا** :- (ل + یا)(حرف) د استثنا توری.

**ليا** :- (ل + یا)(صف) خوشې ، ایله ، ازاد.

د میاګلـــــه لیا په بیابان ده
چې په قصد وراغی له د زدا نه (دولت)

**لیار** :- (ل + یا + ر)(اس ، مو ، ج ـــ رې) لار ، سړک قاعده ، دستور ، رسم ، نرخ.

**ـــــ ایستل** :- لار ایستل ،دود جوړول ، رواج ایستل.

**لیاړو** :- (ل + یا + ړو)(صف ، اس ، مذ ) لاړې جن ، لاړن ، لاړو.

**لیاړې** :- (ل + یا + ړې)(اس ، جم) لاړې ، د خولې اوبهٔ.

**ـــ بهېدل** :- د خولې نه اوبهٔ بهېدل ، کوم څیز ته لالچ اخیستل .دڅهٔ څیز په لېدو خواهش ورته پیدا کېدل.

**ـــ څڅول ، څهٔ ته** :- د څهٔ څیز په لېدلو لاړې د خولې نه رابهېدل ، څهٔ څیز ته ډېر زیات خواهش پیدا کېدل.

**ـــ څڅېدل ، څهٔ ته** :- (و ـــ لیاړې بهېدل).

**ـــ وچېدل ، په خولهٔ کښې** :- ډېرې زیاتې ویرې اخیستل ، ډېر زیات ګبراؤ کېدل، وار پار خطا کېدل.

**لیاړے** :(ل + یا + ړے)(اس ،مذ ،ج ـــــ ړي) لهړے ،لاړے ،کړی، برګه .په چت د اچولو لرګے.

**لیاشه** :- (ل + یا + شَ)(اس ، مو ، ج ـــ شې) لشه ، نېش ، لشکه.

**لیب** :- (لي + ب)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) اړ ، حیصار ، منع.

نولس وژني په لـــــــوه تشه اوربشه
لیب په دین او په ایمان او په سر نهٔ دي (حسین)

**لېبر** :- (لي + ب + ر)(ه ، اس ، مذ ) لاړې ، د خولې لعاب.

**لېبغوړه** :- (لي + ب + غو + ړ)(و ـــ لوبغاړے).

**لېبل** :- (لي + ب + ل)(انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) نخښه ، د کاغذ وغېره هغه ټکړه چې کوم خاص نخښه پرې چاپ شوې وي پېژند / پېجند پاڼه.

**لیبیا** :-(لي + ب + یا )(اس ، مع ) د قطبي افریقې یو اسلامي ملک.

**لیپړے** :- (لي + پ + ړے)(اس ، مذ ، ج ـــ ړي) شړت پړت او مانده ډنګر سړے.

**لېپړے** :- (لي + پ + ړے)(اس ، مذ ) نرمه او یخه خټه.

**لے پهٔ لے** :- (لے + پ + لے)(تف) بیا بیا ، پرله پسې.

لکه : ستا خوند ګیانې چې لے په لے زما په کور اوزي نته ووزي.لور په لور ، هر طرف ته.لے په لے ورپسې وګرځېدم خو بیا مې نهٔ موند .

**لیت** :- (لي + ت)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) نرے شان غوړ لرګے ، چې د رڼا دپاره بلولے شي.د ماچس تیلے.

**لیت** :- (لي + ت)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) مهین ، په سولېدلو سره مهین او د لاسونو نه څخه ښوياند شوے.

**لیتاړ** :- (لي + تا + ړ)(و ـــ لتاړ).

**لیتاړه** :- (لي + تا + ړَ)(اس ، مو ، ج ـــ ړي) زره جامه. چیرړه ، چیرانګه.

**لېت پېت** :- (لي + ت + پي + ت)(صف ، مذ ،مو ـــ ه ـــ ه)ډېر زیات سولېدلے ، مهین او هوار شوے ، سولېدلو سره ښویاند شوے.

**لېت پېت** :- (لي + پ + پې + ت)(صف ، مذ ، مو ، ـــ ه ـــ ه) لړلے شوے ، ککړ شوے ، الوده ، ککړ.

**لیترے**:- (لي + ت + رے)(صف ، مذ ، ج ـــ ري) خوړ وور شوے ، خپور ، تیت

**لیتو پریس** :- (لي + تو+پ+ ر+س)(انګ تر ،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه چاپه خانه چې په کښې په کاڼي باندې د چاپ کار کولے شي.ډېرې چاپ مشین.

**لیت و لعل** :- (لي + (تو) ل + ع + ل)(ع تر ، تف) انې بانې ، په خبرو وخت اړونه ، ټال مټول.(اصلاً د ,, لیت،، ( کاشکے / امید دې چې...) او لعل ، امېد دے ، شاید وغېره ، دواړه هم معنٰی الفاظ دي.خو زمونږ په ژبو کښې ئې معنې بدلې شوې دي).

**لېتهی** :- (لې + تهی)(اس ، مو )د اوړو یا د دارو نرمه خټه شان چې د دارو په طور په بدن لګولے شي.نرم بې خونده پخکړے .کاچې.یو قسم خوراک چې دارو نه تیارولے شي او غوړو او شکرې سره خوړې شي.

**لیتي** :- (لي + تي)(اس ، مو )د مرې د یوې دستورې نوم.

په دریمه په لېتهي کښې
په بل غم وي تهٔ وادهٔ کړې (حمید )

**لیث** :- (لي + ث)(اس ، مذ ، ج ـــ ان) زمرے ، شېر.

**لیچ** :- (لي + چ)(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د سترګو خوږ.

**لیچ** :- (لي + چ)(ف )لاړه ، هغه لاړه چې د ماشوم د خولې نه بهېږي.

**لېچه** :- (لي + چَ)(اس،مذ ، ج ـــ (۱) ونه ، (۲) چې) بازو ، د لاس د پنجې نه واخلې تر څنګل پورې عضو.ددې عضو هډوکے.

**لیچار** :- (لي + چا + ر)(اس ، مو ) بېهوده خبره ، بکواس.

**لېچکے** :- (لي + چې + کے)(اس ، مذ ، ج ـــ کي) د ,, لېچ ،، تصغیر دے.

**لېچن** :- (لے + چ + ن)(صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغه سړے چې سترګې ئې خوږېږي.دسترګو خوږ واله.

په فراق کښې مې په سترګو خوب حرام شهٔ
پـــــه هېڅ باندې ورمشه د لیچن شپــه (خوشحال)

**ـــــ سترګې** :- (ـــ س + ت + ر + ګې)(پ تر ، اس ، ج) خوږې سترګې.

څو ګوري زاهدان و ښکلي مخ ته
د لیچنو سترګو کسے په نمر خوږ شي (حمید )

**لېچو** :- (لي + چو ) د ,, لېچې ،، (جمع ) بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**دخپلو ـــ**:-(د + خ + پ + لو ـــ)(پ تر ، تف) د خپلومټو، د خپل محنت، مشقت.

خوره خوروه د خپلو لېچو
مزري دا کا چې روئیدار دي (خوشحال)

**د ـــــ توان** :- (د ـــــ ت + وا + ن)(پ تر ، اس ، مذ ) د مټو زور ، د مټو قوت ، د لاس (و پښو ) محنت.

**لېچه** :- (لي + چه)(اس ، مذ ، ج ـــ ي) مټ ، بازو.

**لیچی** :- (لي + چ + ی)(اس،مو) د یوې مشهورې مېوې نوم.لچي.

**لېچی** :- (لي + چ + ی)(و ـــ لېڅی).

**لېچې** :- (لي + چې) د لېچه جمع ، مټې.

**ـــ اغښتل څهٔ څیز ته** :-

**ـــ غړول** // :-

**ـــ نغاړل** // :-

**ـــ نغښتل** // :- مټې نغښتل ، کوم اهم کار یا ګران کار ته ځان تیارول ،کار ته تیارېدل.

لېچې څهٔ لره غړې توره وکاږې
که د خوارو د وژو په اهنګ نهٔ ده (خوشحال)

**لېچې** :- (لي + چې)(اس ، مذ ، ج ـــ ي) تادي ، تلوار ، بیړه.

**لېچے** :- (لي + چے)(اس ، مذ ، ج ـــ چي) د دورازې یو بازو ، څنګلې.

**لېڅ** :- (لي (ت) س)

**لېڅه** :- (لي + (ت) سَ) (و ـــ لېچ / لېچه).

**لېڅی** :- (لي + (ت) س +ی)(اس ، مو ) د وړی د نرې ناربشلې تار غند ، چې د ربشلو دپاره تیاره کړے شوے وي.

**لېڅې** :- (لي + (ت) سې) (و ـــ لېچه).

**لید** :- (لي + د)(اس،مذ ) دیدن ،لیدنه ،دلیدلو قوت ، بینائي.

ليدپه سترګونشي بې لوګې د سرې اورد ے
مـــا زده زما زړۀ زده مبتلا ګوره په چا يم (حميد)
**ـــ کول** :- کتل ، د نظر نه کار اخستل ، لکه : په تيارۀ کښې ليد کول.
**ليدل** :- (لي + د + ل) (مص) په نظر کښې راوستل ، (ف : ديدن) ملاقات کول ، ملاوېدل ، محسوسول.لکه : په دې کښې ستا تاوان وينم.
**ــ کتل** :- (ــ ک + ت + ل) ليدنه او کتنه ، ملاقات ،ملاوېدنه.
**ـــ کېدل** :- کتلے کېدل ، په نظر کښې راتلل ، لکه : دغه مناره له لېرې ليدل کېږي ، ملاقات کېدل ،ملاوېدل ، پېښېدل،واقع کېدل . لکه : داسې کم لوز ليدے کېږي.
**ليدلو** :- (لي + د + لو) د ,, ليدل ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو وغېره سره راځي. لکه : د ليدلو ځاے.
**ـــ کتلو** :-(ــ ک + ت + لو) د ,, ليدل کتل ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي. لکه : د ليدلو کتلو نه وروسته.يا ــ تر بيا ليدلو کتلو پورې رخصت.
**دـــ قوت**:- (د ـــ قو + و + ت) (پ تر ، اس ، مذ) بينائي ، د نظر قوت.
**ليدلے** :- (لي + د + لے) (اس مف ، مذ ، ج ــ لي) هغه چې په نظر کښې راغلے وي. کتلے شوے.هغه چې ليدنه يا ملاقات ورسره شوے وي.
**ــ کتلے** :- (ــ ک + ت + لے) (پ تر ، اس ، مف ، ج ــ لي ــ لي) هغه چې ښه په ليدلو کښې راغلے وي .ښۀ په غور سره په نظر کښې راغلے وي . ازمئيلے.په ښۀ شان تجربه شوے.معلوم.
**نا ـــ** :-بغېر د ليدلو نه / ځخه.هغه چې ليدلے شوے نۀ وي.بغېر د ملاقات نه / ځخه.
**ليدلي** :- (لي + د + لي) (اس ، مف) د ,, ليدلے ،، جمع ده.د ,, ليدلے ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.
**ـــ کتلي** :- (ـــ ک + ت + لي) د ,, ليدلے ،، جمع ده . لکه : ليدلي کتلي خلق.د ,, ليدلے کتلے ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.لکه : د ليدلي کتلي ښهرونو حال.
**ليدنه** :-(لي + د + نَ ) (حمص) د ,, ليدل ،، مصدر نه / ځخه ،حاصل مصدر ، ملاقات
**ليدو** :- (لي + دو).
**ليدلو**:-(لي + دْ + لو) (اس ، مذ) د ,, ليدۀ ،، بدل شکل دے . ملاقات ، ملاوېدنه
**ليدون** :- (لي + دُو + نْ) (حمص) ليدنه ،کتنه ، په نظر کښې راوستنه، ملاقات ، ملاوېدنه ، ديدن.
**ليدونکے** :- (لي + دُو + نْ + کَے) (اس ، فا ، مذ ، ج ـــ کي) په نظر کښې کوونکے ، په نظر کښې راوستونکے ، ملاقات کوونکے.
**ليدونے** :- (لَي دُو + نَے) (اس ، مذ ، ج ــ ني) سترګه ، چشم.
**ليدۀ** :- (لي + د) (حمص) کتنه ، ليدنه.ملاقات ، ملاوېدنه.
**ـــ کاتۀ** :- (ــ کا + ت) (و ــ ليدل کتل). (کاتۀ اصلاً د کتۀ بدل شکل دے).
**ليده** :- (لي + دَ) (اس ، مو ، ج ـــ دې) ديده ، سترګه.
**ـــ ور** :- (ـــ ؤ + رْ) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ديده ور ، سترګه ور ، هوښيار ، وينې ، صاحبِ نظر.
**ليدۀ ليدۀ** :- (لي + د + لي + د) (پ تر ، تف) ديده او دانسته ، سره د علم او پوهې.
**ليدئ** :- (لي + د + ئ) (و ـــ ليدۀ).
**لير** :- (ل + يَ + رْ) (اس ، ظر) لار ، ليار.
که سفر د هر ديار کړې درته وائي
چې حرص ئې ګرځوي په هره لير (خوشحال)

**لېر** :- (لې + رْ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) ګډوړے ، بزه.
**ـــ بانۀ** :- (ـــ با + ن) د ,, لېربون ،، جمع ده. ګډ بانۀ.
**ـــ بنه** :- (ـــ ب + نَ) (پ تر ، اس ، مو ج ـــ بنې) د ,, لېربون ،، تانيث.
**ـــ بون** :- (ـــ بو + ن) (پ تر ، اس ، مذ) د لېرانو ځروونکے ، د ګډو بزو د وړو ، بچو ځروونکے ، ګډبه.
**ـــ وغه** :- (ـــ و + غَ) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ غې) هغه ورغومے چې شپون له داجرت په طور ورکولے شي.
**لېر** :- (لې + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د کېږدۍ قوسي ستن. (ف : دېر).
**لېر** :- (لے + ر) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) کنده ، جور / ژور ځاے ، چې د اوبو په غاړه جوړ شي.
**لېر ـــ** :- (لې = ر ـــ) (سابقه) د لېرې مخفف دے .د سابقې په طور استعمالېږي.
**ـــ ليد** :- (ـــ لي + دْ) (پ تر ،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) دُور بين ، (نوې اصطلاح ده).
**ـــ ليدونکے** :- (ــ لي + دُو + ن + کَے) (پ تر ، اس ، فا ج ــ کي) تر لرې پورې د لېدلو بينائي لرونکے لر نظرے.دوراندېش ، لرې خيال کوونکے.
**ـــ ليدي** :- (ـــ لي + دي) (و ــ لېر ليدونکے) لکه : سترګې مې لېر ليدي نۀ دي
**لېربه** :- (لې + ر + بَ) (و ـــ لېربون).
**لېرګي** :- (لې + ر + ګَ + ی) (اس ، مو) دغوږ نرمه.
**لېرنه** :- (لې + ر + نَ) (اس ، مو ، ج ـــ نې) هغه نالې چې د غږدۍ نه چارچاپېره کنستے شي.چې د باران اوبۀ په غږدۍ کښې دننه نۀ راځي.
**لېرو** :- (لے + رو) د ,, لېرے ،، (جمع) بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي. لکه : د لېرو ځايونو خلقو ته ډېر تکليف دے.
**لېرونۍ** :- (لې +رو+ نَ +ی) (اس ،مو) د ,, لېرونے ،، تانيث دے.
**لېرونے** :- (لې + رو + نے) (اس ، مذ ، ج ـــ نې) هغه ګډوړے ورغومے چې لا د پيو د رودلو وي ، خو مور ئې نۀ وي.
**لېرووني** :- (لې + ر + وو + ني) (اس ، جم) هغه لرګي خشاک وغېره چې په سېلاب کښې راغلي وي.
**ليره** :- (ل + ي + رَ) (اس ، مو ، ج ـــ رې) (و ـــ لير).
**ليره** :- (لي + رَ) (ه ، اس ، مو ، ج ــ رې) چيرړه ، چړانګه ، (هند : لير).
**لېره** :-(لې + ر) (اس ، مو ، ج ـــ رې) د دوه ؤ غرونو تر مېنځه ژور ځاے يا لويه کنده.
**لېري** :- (لې + ري) (اس ، مو) د ګډو بزو د بچو رمه.
**لېري**:- (لې + ري) د ,, لېر(۱) ،، بدل شکل ، چې ځينو مغيره ؤ تورو راځي.
مړنے لېوۀ چې حمله په لښکر وکا
د نامرد يا په ورغومي يا په لېري (خوشحال)
**لېرې** :- (لې + رې) (صف) بېرته ، پرانستے لکه : ور لېرې کړه.
**لېرې** :- (لې + رې) (اس ظر) لرې ، دور ، په ډېره فاصله ، بعيد (ځينې خلق ئې تلفظ ,,ليري ،، يا ,,ليرے ،، غونډې يې سره هم کوي.
**ـــ کول** :- پرانستل ، (لکه: ور ، جرنده) په فاصله کو ، په فاصله کښې ، بېرته کول.
**ـــ کېدل** :- په فاصله کېدل،بېرته کېدل ،پرانستے کېدل ،(ور،جرنده وغېره).
**ـــ ليدل** :- تر لرې پورې نظر کول.مجازاً دُور انديشي کول ، د راتلونکي وخت د حالاتو په حقله فکر کول.
**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے) (و ـــ لېرے توب).
**ـــ وتل** :- په ډېره فاصله کېدل ، ډېر لېرې رسېدل.

**د ـــ ختيځ** :- (د ـــ خَ + تيِ + (د) ز) (پ تر ، اس ، ظر) د لرې مشرقي (ملکونه).مشرق بعيد.

**لېرې** (۲) :- (لې + رې) (حرف) د چا د ځان نه د شړلو کلمه ده ، لېرې (ورک شه) لرې شه . د تعجب دپاره هم استعمالېږي .لېرې ! دا خبره د منلو نه‌ده.

**لېږۍ** :- (لې + ر + ئ) (اس ، مو) نرۍ لار ، تنګه لار.

**لېږ** :- (لَې + ږْ) (اس ، مذ ، ج ـ ونه) قطار ، سلسله ، لاړ ، لړ.

**لېږ** :- (لَې + ږ) (اس ، مو ،ج ـ ړې) لاړه ، د خولې لعاب (اوبۀ).

**ـــ جن** :- (ـــ ج + نْ) (صف ، مذ ، مو ـ ه) لاړجن ، هغه چې د خولې نه ئې لاړې بهېږي.

**لېږو** :- (لې + ږُو) (و ـــ لېږجن).

**ليږه** :- (ل + يَ + ږَ) (اس ، مو ، ج ـــ ړې) لاړه ، د خولې لعاب (اوبۀ).

**ليزګه** :-(لې + ز + ګَ) (اس ، مو ، ج ـــ کې) ګوډۍ ، د جينکو د لوبو ګوډاګے.

**لېزم** :- (لې + ز + مْ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) د ,,لازم ،، بدل شکل دے . ضروري، فرض.

**ـــ کول** :- لازم ګرځول ، ضروري ګرځول.فرض ګڼل.

**ـــ کېدل** :- لازم ګرځېدل ، ضروري ګرځېدل ، فرض کېدل ، لازمي کېدل.

**لېزمي** :- (لې + ز + مي) (و ـــ لېزمي).

**لېږ** :- (لِې + ګ / ژ) (اس ، مذ ، ج ، ـــ ان) غوئے ، هغه لېږ دا چاغه ده ؟

**لېږد** :- (لِې + ګ / ژ + د) (اس ، مذ ، ج ـ ونه) کوچ ، (په سفر) روانېدنه ، روانګي.

**ـــ کول** :- کوچ کول (په سفر) روانېدل.

**لېږدل** :- (لې + ګ / ژ + د + ل) (مص) کوچ کول (په سفر) روانېدل ، رحلت کول. نازلېدل ، راتلل.

په ما خوار باندې ئې نر ناحقه لېږدي
سل بلا دې څنګه لوز کا الغياث (خوشحال)

**لېږدنه** :- (لې + ګ / ژ + د + نَ) (حمص) کوچ ، روانېدۀ ، روانګي ، رحلت.

**لېږدول** :- (لې + ګ / ژ + دَ + ؤ + لْ) (مص) په کوچ کول ، روانول ، لېږل.

**لېږدونکے** :- (لې + ګ/ژ +دو+ نْ + کَے) (اس ، فا ، مذ ، ج ـــ کي) کوچ کوونکے ، (په سفر) روانه کېدونکے ، رحلت کوونکے.

**لېږدونه** :- (لې + ګ/ ژ + د + ؤ + نَ) (حمص) روانه کونه ، په کوچ کونه ، لېږنه.

**لېږدونکے** :- (لې + ګ/ ژ +د+وو+ن +کے) (اس،فا،مذ ، ج ـــ کي) په سفر لېږونکے ، په کوچ کوونکے ، روانه کوونکے.

**لېږدے** :- (لې + ګ / ژ + دے) (اس ، مذ ، ج ـــ دي) باري ځاروے ، هغه ځاروے چې بارونه وړي.

**لېږدېدل** :- (لې + ګ/ژ + دې + د + ل) (مص) (و ـــ لېږدل).

**لېږغندے** :- (لې+ګ/ژ +غ+ ن +دے) (اس ، فا ، مذ ،ج ـ دي) کوچے ، کوچ باشي.

**لېږل** :- (لې + ګ / ژ + ل) (مص) سپارل ، ګُمارل ،د منافقانو نخښه دا ده چې ليږي د ګناه و چارو ته ځان.....(خېر البيان)

د نبي ولي روش دے سرې بولي وطاعت ته
منـــافق به ځان هم بل يو و ګناه وته لاړه (دولت)

**لېږل** :- (لې + ګ / ژ + ل) (مص) استول (ف : فرستادن).

**لېږلځائے** :- (لې + ګ / ژ + ل + (د) زا + ئې) (پ تر ، اس ، ظر) د لېږلو ځاے ، د استولو ځاے.

**لېږلے** :- (لې + ګ/ژ + لے) (اس ، مف ، ج ـ ي) استولے ، استولے شوے .(ف : فرستاده)

**لېږمۍ** :- (لې + ګ / ژ + م + ئ) د ,, لېږمي ،، تانيث دے.

**لېږمے** :- (لې + ګ/ ژ + مے) (اس ،مذ ،ج ـــ مي) خوشامندګرے ، چاپلوس.

**لېږمي** :- (لې + ګ / ژ + مي) (اس ، مو) خوشامنده ، چاپلوسي.

**ـــ کول** :- خوشامنده کول ، خوشامنده برامنده کول.

**لېږنه** :- (لې + ګ / ژ + نَ) (حمص) استونه ،(ف : فرستادن).

**لېږوونکے** :- (لې + ګو / ژو + ن +کَے) (اس ، فا ،مذ ،ج ـــ کي) استوونکے.

**لېس** :- (لې + س) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـ ونه) فيته،جالړ،اوږده ګلداره پټه چې دجامويه غاړو لګولے ، شي.پېڅه ، ګوټه ، کناری.

**لېس** :- (لې + س) (ف ، لاحقه) د لاحقې کار ورکوي او د څټلو معنې شندي.

**کاسه ـــ** :- (کا+ سَ ـــ) (ف تر،صف ، اس، مذ ، ج ـــ مو ـــ ه) کاسه څټُونکے ، تالي څټ ، خوشامندګرے.

**لېس** :- (لې+س) (صف،مذ ،مو ـــ ه) وردي ، جامې يا وسله اغوستے،تيار . لکه: زمونږ لښکر په هر وسله لېس وو.

**ـــ کول** :- تيارول ، په وسله تيارول ، وسله بند کول.

**ـــ کېدل** :- تيارېدل ،وردي ،جامه اغوستل ،يا وسله تړل ،وسله بند کېدل.

**ـــ نومېدل** :- هيڅ نومېدل ، لاشے ګڼل کېدل ، هيڅ يا حقير ګڼلے کېدل.

هيڅ په ما پوهېږي نوم مې څۀ دےستا په عشق کښې
قـــبس د لـــيلا وو ، تاويشـــتلے لـــيس نـــومم
(خوشحال)

**لېسانس** :- (لې + سا + ن + س) (ار ، فر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (و ــ لېسن).

**ليست** :- (لې+ س + ت) (فر ، ره ، اس ،مذ ،ج ـــ ونه) رنګ ، لسټ ، فهرست.

**لېستکے** :- (لې + س + تَ + کے) (اس ، مذ) يو قسم بوټے دے.

**لېسن** :- (لې + س + نْ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د انګرېزي لائيسنس يا د فرنچ ليسانه بدل شکل دے . اجازه نامه ، د کوم څيز د راتلو يا د کوم کار د کولو د اجازې کاغذ.

**لېسه** :- (لې + سَه) (اس ، مو) تربيت ګاه ، سکول.

**عسکري ـــ** :- (ع + س + ک + ري ـــ) فوجي سکول ، د فوځيانو د تربيت ځاے.

**لښبور** :- (لې + ش + بو + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) زوړ شلېدلے قميص.

**لښتکۍ** :- (لې + ش + ت + ک + ی) د ,, لښتکے ،، تانيث دے.

**لښتکے** :- (لې + ش + ت + کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) يو لښت قد واله ، مندرے ، پست قامت.

**لښکه** :- (لې + ش + کَ) (اس مو ، ج ـــ کې) لشکه ، لشه.

**لښکۍ** :- (لې + ش + ک + ی) (اس مو) يو قسم ګياه ده چې اکثره د ولو په غاړه کېږي.يا د غنمو په فصل کښې کېږي.

**لښل** :- (لې + ش + ل) (مص) لوشل ، د پيه ور ځاروي نه پئ / شودۀ اخيستل.

**لښه** :- (لې + شَه) (اس ، مؤنث) لشه.

لښتې ئې نۀ دي جوړې بنېرې دي
زمـــا په زړۀ ئې لښه ګوزار کړه (سکندر)

**لېښن** :- (لې + خ / ش) (اس،مذ) بار ،په ځاروکښېښونکے بار ، پيټے.

**ـــ کېدل** :- بارېدل ، بارولے کېدل.

بـــار د اوښانو په خرونو لېښن نشي
جام د مستانو په صوفيانو څېښن نشي (خوشحال)

**لېښن** :- (لې + خ / ش)(اس ، مذ ) کوچ ، روانګي.

**لېښل** :- (لې+خ / ش + ل)(مص) کوچ کول ، روانېدل (په سفر).

**لېښل** :- (لې + خ / ش + ل)(مص) ښتېل ، په ژبه / جبه ښتېل.

**لېښنګ** :- (لې + خ / ش + ن + ګ)(و ـــ لېښنه).

**لېښنه** :-(لې + خ / ش + نَ) (حمص) ښتېنه.

**لېښنه** :- (لې + خ / ش + نَ)(حمص) لېږدنه ، کوچ کونه ، کوچ روانګي.

**لېښول** :- (لې + خ/ ش + ؤ + ل)(مص) لېږدول ، روانه کول (په سفر) په کوچ کول

**لېښونې** :- (لې + خو/شو + نې)(اس ، مذ ) یو غرئیز بوټی دے ـ چې پاڼې ئې د ژلې په شان او د چاښېل د بوټي همره وي ـ سرې بخنې دانې هم کوي.

**لېښه** :- (لې + خَ / ښَ) (اس ، مو ، ج ــــ ښې) هغه جامه/ ژامه چې غاښ ورکښې نهٔ وي ـ بې غاښونو جامه / ژامه.

د لېوهٔ د غــــافل دومره تفاوت دے

لکه یو چې په غاښو خوري بل په لېښه (مرزا خان)

**ــــ نهٔ لرل** :- لشه نهٔ لرل ، د تکلیف یا زیان رسولو طاقت نهٔ لرل ـ غصه ، قهر ، یا رعب نهٔ لرل.

**لېښېدل** :- (لې + خې / ښې + د + ل)(مص) کوچېدل ،روانه کېدل ،رحلت کول.

**لیک** :- (لي + ک) (اس ، مذ ، ج ـ ونه) تحریر ،لیکلے شوے څیز ـ چټې ،خط

**ــــ پاڼې** :- (ـــ پا+ ڼې)(اس ، ج) هغه پاڼې چې لیک پرې کولے شي ـ د خطونو د لیکلو پېپر

**ــــ پړ** :- (ـــ پَ + ړْ)(پ تر ، اس ، مذ ) لیکنه او لوستنه ، مجازاً تحریري عهد نامه وغېره.

**ــــ پړ کول** :- عهد نامه وغېره په لیک کښې راوستل.

**ــــ دود** :- (ـــ دو + د )(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـ ونه) د خط د لیکلو طریقه ، رسم الخط.

**ــــ ښود** :- (ـــ خو / ښو + د )(اس ، مذ ) د لیک زده کړه ورکونه ، د لیکلو طریقه یا چل ور زده کونه.

**ــــ لوست** :- لیکلنه او لوستنه. (ف : نوشت و خواند ) د لیکلو او د لوستلو علم یا زده کړه.

**ــــ لوست نه ورتلل** :- لیکل او لوستل نهٔ ورتلل ـ اُمي ,,بودل،، ان پړه.

**د ــــ مېز** :- (د ـــ مې + ز)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه مېز چې د لیک د کار دپاره پکارېږي.

**عربي ــــ** :- (عَ + رَ+ بِي ـــ)(اس ،مذ ) د عربۍ د حرفونو په شان لیک ـ د عربۍ د لیک دود.

**لېک** :- (لې + ک)(ع ، حرف) د لیکن (لاکن) مخفف دے.

**لیکانې** :- (لِي+ کا+ نې)(اس ،مذ ، ج ـ نې) قلم ،د لیکلو اله، (نوے لفظ ده).

**لیکمن** :- (لي + ک + م + نْ)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) حصه دار ، برخه لرونکے.

**لیکنځه** :- (لِي + کَ + نْ + (د) زَ)(اس ، مو ، ج ــــ ځې) لیکلے څیز ، تحریر مضمون ، لکه : په دې لیکنځه زهٔ تفصیل څخه ځان ژغورم ـ خط ، چیټې.

**لیکنـدوئې** :- (لـي + ک + ن + دو+ ئـې)(اس،فا ،مـذ ،ج ـ ئـي) لیکـونکے ، نوبسنده،کاتب.

**لیکنه** :- (لي + ک + نَ)(حمص) تحریر ، د لیک کار.

**لیکنې** :- (لي + ک + نې)(اس ، مذ ، ج ـــ نې) قلم ، د لیکلو اله ، لیکانې ، (نوے لفظ دے).

**لیکلنې** :- (لي + ک + نې)(اس ، مذ ، ج) د ,,لیکنه ،، جمع ـ د ,,لیکنـه ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي ـ لیکانې ، قلم ، لکه : د لیکنې انداز.

**لیکوال** :- (لي + ک +وا + ل)(اس ، فا ، مذ ، ج ـــ ان) د لیکلو کار کوونکے ، لیکلو واله ، د قلم خاوند ، ادیب ، نثرنګار.

**لیکواله** :- (لي + ک+ وا + له) (اس ، مو ، ج ـــ لې) د ,,لیکوال ،، تانیث دے

**لیکوالي** :- (لي + ک+وا + لي) (اس ، مو) تحریر ، د لیکنې فن ، انشاء پردازي ، مضمون نګاري.

**لیکونکے** :- (لي + کو + ن + کے)(و ـــ لیکونے).

**لیکونے** :- (لي + کُو + نې)(اس ، فا ، ج ـــ ني) لیکونکے ، په لیک کښې راوستونکے ، د لیکلو کار کوونکے کاتب.

**لیکه** :- (لي + کَ)(اس ، مو ، ج ـــ کې) ویره ، ډار.

خوف چا کاڼې ځو دا ساه مو تمام نهٔ وي

دغـــــه پسه له ښهٔ خوایه مو لیکه ده (اخون درویزه)

**لیکه** :- (لي + کَ)(ه ، اس ، مو ، ج ـ کې) کرښه ، خط ، سطر.

لیکه د تور خط د یار لمخه شوه چاپېره

ښهر د اسلام کــــړ غلبـه د کفر ګېر (حمید)

(هـ : لیکه) حصه ، برخه ـ داغ ، نخښه ، کرښه.

هر ساجد چې په تندي جوړه لیکه کا

نــــور دې ترکه د دنیا هره لیکه کا (مصري خان)

**ــــ په اوبو کښل** :- ناممکنه کار کول ، ناشونے کار کول ،بې فائدې کار کول.

**ــــ راښکل** :- کرښه راښکل ، خط راښکل ـ اخري حد مقررول ـ په یو کار مجبورول ـ چې که دا کار نهٔ کوې نو بیا زمونږ دوستي یا تعلق به پاتې نشي.

**ــــ لار** :- (ـــ لا+ ر )(پ تر ، اس ، مو ، ج ـ ې ـ ې ) نبغه لار ،سمه لار ، صحیح لار ، مستقیمه لار.

**پـه زړه ــــ تلـل** :- د زوړ دود یـا رسم پابنـدي کـول ، پـه زوړ روش محکـم اوسېدل.

**په یوه ــــ تلل** :- په یوه قطار کښې تلل ـ مجازاً یو شان کار کول.

**لیکه** :- (لي + کَ)(اس ، مؤنث ) د قولنج درد.

باد ګوله وي که لیکه وي

دا دارو ورلره ښـــهٔ دي صدیق طبیب ، زړه پانګه)

**لېکه** :- (لې + کَ)(ه اس ، مو، ج ـــ کې) حساب ،کاته.

د دمړیو د کونجکو په حساب دے

په لېکه به جوکه ځیر دے تر هندوانو (خوشحال)

(هـ : لیکه) بخره ، حصه ، برخه.

**په ــــ اخېستل** :- په برخه اخېستل ،په حصه داري اخېستل.

**په ــــ ورکول** :- په برخه ورکول ،د حصه داري په شرط ورکول.

**لیکے** :- (لي + کے)(اس ، مذ ، ج ـــ کي) کتاب ، (نوے لفظ دے).

**لیـګ** :- (لـي + ګ)(انګ ، اس ، مـذ ،ج ــــ ونـه) جماعـت ، ډلـه ، ټولے ،مجلس.

**مسلم ــــ** :- (مُ + س + ل + م ـــ)(اس ، مع) د زوړ هندوستان د یو ټولي نوم ـ چې مسلمانانو د کانګرېس پـه مقابلـه کښـې د مسلمانانو د حقوقـو د حفاظت دپاره جوړ کړے وو.

**لیګه** :-(لِي + ګَ)(اس ، مو ، ج ـ ګې) شړه زمکه ، بنجره زمکه ، غېر اباده زمکه.

**لیګي** :- (لِي + ګي)(اس ، مذ ، ج ـ ان) د مسلم لیګ غړے.

**لېله** :- (لَې + لَ)(ع ، اس (۱) مذ (۲) مؤنث) شپه ، شب.

**ـــــ ونهار** :- (ـــ(لو) نَ + هَا + رْ)(ع ،ف تر ،اس ،ج) شپه او ورځ.

**لېلا** :- (لې +لا) (اس ، مو) د زنانه يو نوم. د عربو د مشهور روماني قيصې ليلٰى مجنون هيروئنه ، د قېس يا د مجنون معشوقه .(وائي چې د رنګه توره وه) معشوقه ، محبوبه ، (په اصل عربي شکل کښې ,,لېلى،، هم ليکلے کېږي)

هغه وخت د ما اختر د ما جمعه ده

چـــې ديدار راته ښکاره که د لېلا (خوشحال)

**لېلام** :-(لې + لا+ م).

**ليلام** :-(لې +لا+ م)(اس ، مذ ، ج ــونه) د ,, نيلام ،، بدل شکل دے .يو څيز په بولـو خرڅونه يعني چې څوک د ټولو نه زياته بولي (د قيمت وايـهٔ) ورکړي دغه څيز د هغهٔ شي.

**ــــ کول** :- د ليلام (نيلام) په ذريعه خرڅول ، يو څيز زيات قيمت ورکولو واله له ورکول.

**ــــ کېدل** :- د ليلام (نيلام) په ذريعه خرڅېدل. يو څيز اوچت قيمت ورکولو واله له ورکړے کېدل .په سپکه طريقه خرڅېدل. (خج په ,, کېدل ،، دے).

**لېلامي** :- (لې +لا+ مي) (صف) هغه څيز چې لېلام (نيلام) کېدونکے وي. يا په لېلام کښې اخستے شوے وي. لېلام چې. مجازاً زوړ ، ارزان بيعه څيز.

**لېلامېدل** :- (لې +لا+ مې + د + ل)(مص) د ,, نېلام ،، په ذريعه خرڅېدل ، زياته بولي (بيعه) ورکولو واله له ورکړے کېدل.

**لېلم** :- (لې + ل + م)(اس ، مذ) نيلان ، د يو قسم مهينې نرۍ کپړې نوم.

**ليلن** :- (لې /لې + ل + ن)(اس ، مذ) د ,, نيلان ،، بدل شکل دې . د يو مهين نرې ټوکې نوم دے.

نۀ کــــوم ساده ليلن

غوارم ګلدار لېډې منتن (غاره)

**لېلو**:- (لې +لو)(اس ، مو) د ليلا يا ليلٰى بدل شکل دے .معشوقې ته د خطاب دپاره وائي.اے معشوقې.

**لېله** :- (لې + لَ)(ع ، اس ، مو) شپه ، شب.

**ـــــ القـدر** :- (ـــ(ت + ل) ق + د + ر)(ع تر ، اس ، مو) د قدر شپه ، د روجو/ روژو د مياشتې يوه خاص مبارکه شپه .چې قرآن پکښې نازل شوے وو.

**الف ـــ** :- (ا + ل + فـــ)(اس ، مع) د قصو د يو مشهور کتاب نوم دے.

**لېل** :- (لې + ل)(اس ، مو ، ج.لې) خوئي ، عادت ، خصلت.

**لېلا** :- (لې +لا)(و ـــ لېلا).

**ـــ مجنون** :- (ـــ م + ج + نو + ن)(اس ، مع) د دوهٔ مينانو نومونه دي .چې د عربو د يو روماني قصې عاشق معشوقه دي. په اسمان کښې د دوهٔ ستورو نومونه دي .دا ستوري په کال کښې يو ځل يو بل ته نزدې شي او بيا لرې کېږي.

**لےلے** :- (لَے + لَے)(اس ، صوت) يو اواز دے .چې هلکان د کوم د بدکار په وجه څوک شرمول غواړي نو په زوره زوره دا الفاظو وائي. هائے ! هائے !!

**ليلے** :- (لې + لَے)(اس ، مذ ،ج ــ لې) کمزورے او مانده هلک.

**ليلېدل** :- (لې + لې + د + ل)(مص) نرے او مانده کېدل ، کمزورے کېدل . زهيرېدل ، ترپېدل.په زړهٔ کښې پټ غم کول. رغړېدل.

**ليم** :- (لې + م)(اس ، مذ) د فلزي (دهات) څيزونو د پيوندولو دپاره يو څيز ليو

**ليمبو** :- (لې + م + بو)(اس ، مذ ، ج ــ ان) نيمبو.

**لمڅې** :- (لې + م + (ت) سے)(و ـــ لمڅې).

**ليمن** :-(لې + م + ن)(انګ ، اس ، مذ) نيمبو شربت چې په کښې نيمبو او د سوډې ګېس ګډه وي.

**ليمو** :-(لې + مو)(اس ، مذ ـــ ګان) نيمبو.

**ليمو** :- (لې + مو) د ,, لېمے ،، بدل شکل دے چې د مغيرهٔ تورو سره راځي. لکه : د ليمو نه د ځار شم.

**په دواړو ـــ** :- په دواړو سترګو ، په ډېره خوشحالۍ او مينه.

**ليمو ناډ** :- (لې /لے + مو + نا + ډ)(فر ، اس) ليمونېډ ، لېمن ، د نيمبو شربت.

**لين** :- (لې + ن) (ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) نرم ، پوس ، هغه واو ، الف او يې (ي) چې اول ترې زور واله تورے راشي.نو لين بللے شي.

**لين** :- (لَې + ن)(انګ،اس ،مذ،ج ــونه) نرۍ لار ، تنګه کوڅه.

**لېن** :- (لې + ن)(انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د ,, لائن ،، بدل شکل دے . قطار ، سلسله.(په پښتو کښې اکثر ,, لېن ،، وئيلے کېږي).

**لېنټر** :- (ل + ن + ټَ + ر)(انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه)د چت جوړولو يوه نوې طريقه چې په کښې د وسپنې سيخونه او سيمټ او باجرې پکارولے شي.

**لېنځکه** :- (ل + ن + (د) ز + کَ) (اس ، مو ، ج ـــ کې) نانځکه ، ګوډۍ (د جينکو د لوبو) لوبتکه ، لوڅکه.

**لېندکۍ** :- (لې + ن + د + ک + ی)(اس ، مو) د ټوپک ماشه.د ټوپک کمانۍ .د سرينډې وغېره د غږولو کمانچه.وړوکې لينده.

**لينده** :- (لې + ن + د)(اس ، مو ، ج ـــ دې)کمان.قوس .غلېل.

**لينده** :- (لې +ن+د )(اس،مع ) د شمسي کال اتمه مياشت ، قوس.

لينده ورغومے هم زيان لري

په دا منزل د پـــه بهار کوږي (خوشحال)

**لينده کۍ** :- (لې + ن + د + ک + ی)(اس ،مو) وړه شان لينده .هغه وړه شان قوسي يا د دوهٔ قوسونو علامت چې په ليک يا چاپ کښې استعمالولے شي.برېکټ ، برېکټونه .

**ليندۍ** :- د شمسي کال اتمه مياشت ، قوس .

**لينـدۍ** :- (لې + ن + د + ئ)(اس ، مو) د ټوپک کمانۍ ، هغه حصه چې د چلولو نه اول راښکلے شي.د پښې هډوکے ، د ښېپې هډوکے .د اوبو داره ، کړه کنده د وړو هلکانو لينده.

**ـــ راښکل** :- د ټوپک ليندۍ راښکل چې ډز کولو ته تيار شي.ټوپک چلولو ته اماده کېدل.

**ـــ کېدل** :- مجازاً راټوغېدل ، دکمان په شان کږېدل.

**ليندے** :- (لې + ن + د ے)(اس،مذ،ج ـــ دي) بېغال ، بېګال ، د لوخې ګل.

**ليندے** :- (لې + ن + د ے)(اس ، مذ ، ج ـــ دي) کمانچه ، هغه ليندۍ چې پرې تاريز ساز غږوي.

مغني په چغانه د ليندے کښېږده

د نغمو پـــــه پردو وغواړه هر تار (خوشحال)

**لينـدے** :- (لې + ن + د ے)(صف ، مذ ، ج ـــ دي)د ليندې يعني د غشو د ويشتلو ماهر .سيندک (شنواري)

په تور باڼهٔ ناوکه په ابرو لينده بې شکه

په پوزه لکه لندے چې راپاسي له کمينه (خوشحال)

**لېن دېن** :- (لې + ن + دې +ن)(ه ، مذ) ورکړه راکړه ، پور را پور . هـلېن دېن ، هند ـلېن دېن) عموماً لېن دېن وئيلے شي.

**لېنډا** :- (لې + ن +ډا)(صف ،مذ ،ج.ګان) سست پست ، کاهل.

**لېنډه** :- (لې + ن + ډَ)(و ـــ لېنډا).

**لېنډۍ** :- (لې + ن +ډ +ۍ)(صف ، مو) د ,,لېنډا ،، تانيث دے۔

**لېن** :- (لې + ن)(انگ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د ,لائن ،، بدل شکل دے ۔ ځينې خلق ,,لېن ،، هم وائي۔قطار ، صف۔

**ـــ بدلول** :- لاره بدلول ، دکار طريقه بدلول۔ پره يا پارټي بدلول۔

**ـــ بېلول** :- لاره بېلول ، په بله طريقه کار شورو (شروع) کول۔پره ، جماعت وغېره پرېښودل۔

**ـــ جوړول** :- قطار جوړول ، صف جوړول۔

**ـــ شړل** :- د چا د طبيعت او ضرورت مطابق خبرې کول۔ ساز باز کول۔

**ـــ صفا دے** :- (انگ پ جمله)هغه پروانه چې د ستېشن بابو د گاډې ډرېور (يا گارډ) له ورکوي چې وړاندې سړک خالي دے۔تۀ پرې تلے شې۔دغې پروانې ته لېن کليئر وائي۔ مجازاً څۀ خطره نشته۔يا څوکيدار يا په کار کښې څۀ مانع نشته۔

**ـــ صفا کول** :- د لارې يا د معاملې په حقله خنډان وغېره لرې کول۔لاره صفا کول۔د لارې خطرې وغېره لرې کول۔

**ـــ کول** :- په قطار کښې اودرول ، په صف کښې اودرول۔قط کول ، په قط کښې کښېښول۔

**پولس/ پوليس ـــ** :- (پو+ل+س/يو + لې +س ـــ)(انگ ، اس ، مذ) هغه بارکونه يا ځايونه چرته چې د پولس لوے شمېر اوسي ۔د پولس لوے دفتر۔

**دبرق ـــ** :- (د ، ب + ر + ق ـــ)(انگ ، فپ تر ،اس ،مذ ، ج ـونه)د بجلۍ تارونه ، د بجلۍ د تارونو سلسله۔

**هوائي ـــ** :- (هـ + وا + ئي ـــ)(انگ پ تر و اس ، مذ ، ج ـــ ونه)د هوائي جهازونو سلسله ، د هوائي جهازونو لېن۔(انگ : ائير لائن)۔

**لېن** :-(لې + ن)(هم‌ذ اس ، مذ) اخستنه ، پور ، قرض ۔په پښتو کښې ,,دېن ،، سره يو ځاے استعمالېږي۔

**لېن دېن** :-(لې + ن + دې + ن)(هـ ، اس ، مذ) ورکړه راکړه ، پور راپور ، معامله ، تعلق

**ـــ کول** :- ورکړه راکړه کول،پور راپور کول ،تجارتي معاملې کول۔

**ـــ نۀ لرل** :- څۀ ورکړه راکړه نۀ لرل۔پور راپور نۀ لرل۔مجازاً گټه ، تاوان ، يا ښۀ او بد نۀ لرې۔تعلق نۀ لرې۔

**لېن ستېن** :- (لې + ن + س/ سو + تې + ن)(پ تر ، اس ، مذ) مختلف قسمه ضروريات يا څيزونه متعلقات ، د يو څيز سره تړلي لوازمات۔

**لېنگ** :- (لې + ن + گ) (اس ، مذ) يو قسم تريخ بوټے دے۔

**لېنگته** :- (لې + ن + گ + تَ)(اس ، مو ، ج ـــ تې) لنگوټه ، په پرزولو کښې يو داؤ چې بل ته پښه / خپه اړمه کړي ۔او راوئې غورزوي ۔ښپه / پښه اړمونه۔

**ـــ اچول جاته** :-

**ـــ کښېښودل چاته** :- په پرزولو کښې د لنگوټې داؤ کول ۔د بل د راغورزولو دپاره پښو / ښپه اړمول۔ بل ته نقصان رسولو دپاره چال يا داؤ کول۔

**لېنگټې** :- (لې + ن + گ + ټ + ۍ)(و ـــ لنگته)۔

**لېنگور** :- (لې + ن + گو + ر)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) لوئې لوئې پښې / خپې لرونکے ، هغه کس چې پنډۍ ئې اوږدې اوږدې وي۔

**لېنگه** :-(لې + ن + گَ)(اس ، مو ، ج ـــ گې) درد زه ، د بال بچ د راوړلو درد۔

**لېنگے** :-(لې + ن + گے)(اس ، مذ ، ج ـــ گي) ټوله پښه / خپه ۔ د مغانو نه واخله تر گېټو پورې پښه / خپه۔ پنډۍ ، د گېټو نه تر زنگنونو پورې پښه / خپه۔

**لېننزم** :-(لې + نَ + نِ + ز + م)(انگ ، اس ، مذ) د لنن مذهب ، د لنن نظريات ، لنن يو لاډينه مفکر وۀ چې موجوده روسي سوشلي او کميونستي نظام ئې جوړ کړے دے۔

**لېو** :- (لې + و)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) خته او بوس سره يو ځائې کړې او بيا په ديوال يا چت نرۍ نرۍ تهه وړپورې کړي۔پلستر۔

**ـــ کول** :- په ديوال يا چت وغېره باندې د ختې او بوسو پلستر کول۔(خج په ,,لېو ،، باندې دے)۔

**ـــ کول** :- يو نرم څيز لکه لېټې ، مرهم ، په بل څيز باندې ورخورول۔( خج په ,,کول ،، باندې دے)۔

**ـــ کېدل** :- د لېو کولو کار کېدل ، په ديوال يا چت وغېره د ختې او بوسو پلستر کېدل۔(خج په ,, لېو ،، باندې دے)۔

**ـــ کېدل** :- کوم نرم څيز لکه مرهم ، لېټې وغېره په بل کوم څيز باندې ورمښلے کېدل او ورپورې نښتل۔ (خج په ,, کېدل ،، باندې دے)۔

**لېـوال** :-(لـې + وا + ل)(صـف ، مـذ ، مـو ـــ ه) خواهشمند ، مشـتاق ، ضرورتمند ۔

**ـــ تـوب** :- (ـــ تو + ب)(اس ، مذ) مشـتاقي ، اندومنـدي ، خـواهش لرنـه اشتياق

**لېوالنه** :- (لې + وا + ل + نَ)(اس ، مو ، ج ـــ نې) ارزو، خواهش ، احتياج۔

**لېوالول** :- (لې + وا + ل + ؤ + ل)(مص) مشـتاقه کول، خواهشمند کول ، ارزو مند کول۔ضرورتمند کول۔

**لېوالي** :- (لې + وا +لي)(اس، مو) اشتياق ، خواهش ، ډېره مينه لرنه۔

**لېوالېدل** :- (لـې + وا + لـې + د + ل)(مـص) لېوالـه کېـدل ، ارزومنـد کېـدل ، مشتاقه کېدل ، ضرورتمند کېدل۔

**لېوان** :- (لې + وا + ن)(اس ، مذ ، ج) د لېوۀ جمع ده۔ شرمخان مجازاً ظالمان ، ناترسه خلق۔

**لېوتنانت جنـرال** :- (لـې + و + ت + نا + نت + جن + را + ل)(ف + اس) پـه فـوج کښې يوه لويه عهده ،لفټيننټ جنرل۔

**لېـو دېـو** :- (لـې + و + دې + و)(هـ ، اس ، مـذ) ورکـړه راکـړه ، مجـازاً گـذاره ، وخت تېرونه ، کوښښ۔

**ـــ کېدل** :- (په گرانه) گذاره کېدل۔

**لېور** :- (لې +و+ر)(اس،مذ ،ج ـ ان / ونه) د خاوند ورور ، دېور۔

**ـــ ځوئے** :- (ـــ (د) زو + ئے)(و ـــ لېورزے)۔

**ـــ زۍ** :- (ـــ ز + ۍ)(پ تر ، اس ، مـو ، ج ـــ يـانې) د لېـور لـور ، د خاونـد د ورور لور۔

**ـــ زے** :- (ـــ زے)(پ تـر ، اس ، مـذ ، ج ـــ زي) د لېـور زوے ۔(زے اصلاً د زوے مخفف دے)۔

**لېـوړۍ** :- (ل + يـو + ړ + ۍ)(اس ، جـم) ريـوړۍ ، مشـهور متيـائي ، چـې د سلېښ کړې گوړې او د سپينو کړو کونځلو نه جوړولے شي۔

**لېول** :- (ل + ئ + و + ل) (مص) عـادت کـول ، اموختـه کـول ، مشـتاقه کـول ، تحريص ورکول۔

**لېول** :- (لـې + وَ / ؤ + ل)(انگ ، اس ، مـذ) يـوه الـه ده چـې د سطحې هـوارے پرې معلومولے شي۔سپرټ ، لېول ، (انگ : لېول ، هواره سطح)۔

**ـــ کول** :- سطح هوارول ، يو شان کول۔

**ـــ کېدل** :- سطح هوارېدل ، سطح يو شان کېدل لوړې جورې / ژورې لرې کېدل

**لېولے** :- (ل + ئ + ؤ + لے)(اس ، مف ، ج ـــ لي) عادت کړے ، اموخته کړے

**لېونتوب** :- (لې + و + ن + تو + ب)(پ تر ، اس ، مو) د لېونو په شان کار يا حرکتونه يا گلتوب۔د طاقت يا عقل نه باهر کار ته اړمېدنه۔

**لېونتون** :- (لې + و + ن + تو + ن)(اس ، مذ) د لېونو هسپتال ، یا د لېونو خلقو د ساتلو ځاې، پاگل خانه (نوے لغت دے).

**لېونسار** :- (لې + ؤ + ن + سا + ر)(فپ تر ، صف، مذ ، مو ــــه) د لېونو هسې ، لېون ورمه ، د لېوني غونديې ، د لېوني په شان.

بیا دې نۀ راځي ناصح زما خلوت له
روغ سړے نۀ کا مجلس له لېونسارو (حسبن)

**لېونسدے** :- (لې + و + ن + س + د ے)(صف ، مذ ، ج ــــ دي) سودائي ، مخبوط الحواس .

**ـــ کېدل** :- سودائي کېدل ، مخبوط الحواس کېدل ، د لېونو په شان کارونه یا حرکات کول.

**لېونغرتے** :- (لې + و + ن + غ + ر + تے)(صف ، مذ ، ج ــــ تي) د لېونو هسې خبرې کوونکې ، بکواسي ، یاوه گو.

**لېونغرے** :- (لې + و + ن + غ + رے)(صف ، مذ ، ج ــــ ري) دلېونو هسې مزاج یا عادتونه لرونکے ،سودائي مزاج ، سودائي ، مخبوط المزاج.

**لېونو** :- (لې + و + نو)(اس ، مو) مجازاً معشوقه ، محبوبه.

ختیک چې ځي نیت تې د ورا دے
په ما دیر لېونو ستا دے (غاړه)

**لېونۍ** :- (لې + و + ن + ۍ)(اس ، مو ، ج ــــ انۍ) د "لېونے" ، تانیث دے.

د لېونۍ ارمان پوره شو
په لاره ځي په گټو ولي زیارتونه (ټپه)

**ـــ پښبۍ** :- (ـــــ پ + خ / ش + ۍ)(پ تر ، اس ، مو) د یو بوټي نوم دے چې په داروگانو کښې پکارولے شي.

**ـــ سپۍ** :- (ـــ س + پ + ۍ) د "لېونے سپے" ، تانیث دے.

**ـــ شپېشتي** :- (ـــ ش + پې + ش + تي)(پ ، تر ، اس ، جم) رشقه ، چې پخپله راټولېږي.خود رو رشقه.

**لېونے** :- (لې + و + نے)(اس ، صف ، مذ ، ج ــ ني / ان) پاگل ، چې دماغ ئې خراب شوي دي دیوانه ،مجنون ، عاشق ، مئین ځنګلي ، خود رو (بوټي وغېره).

**ـــ بوټے** :- بنګ ، د بنګو بوټے.

**ـــ سپلنے** :- (ـــ س + پ + ل + نے).

**ـــ سپېلنے** :- (ـــ س + پې + ل + نے)(پ تر ، اس ، مذ) د یو قسم گیاه نوم دے.(ف : اسپند دیوانه).

**ـــ سپے** :- (ـــــ س + پے)(پ تر ،اس،مذ،ج ــ پي) هغه سپے چې لېونے شوے وي . مجازاً هغه سړے چې هرچا سره هېڅ بېځه جنګ کوي او ننبلي.

**ـــ کول** :- پاگل کول،دیوانه کول. عاشق کول ، مئینول.

**ـــ کېدل** :- پاگل کېدل ، دیوانه کېدل ، مجنون کېدل ، دماغ کښې فرق راتلل، دماغ خرابېدل .عاشق کېدل ، مئینېدل ، د مصلحت یا عقل نه باهر کار کولو ته تیارېدل (څۀ پسې) د نوم ځیز ډېر زیات مشتاق کېدل.

**د بر ـــ** :- (د ، ب + ر ـــ)(پ تر ،صف ،مذ ،ج ـــ ني) ډېر زیات لېونے.

بنائستې انجلۍ اوبۀ کړم
کے د بر لېونے نۀ کړم (غاړه)

**لېونے** :-(لې + و + نے)(اس ، مذ) یو قسم وابنۀ، چې د غنمو په فصل کښې پخپله پیدا کېږي.

**لېوني** :- (لې + و + ني) د "لېونے" ،بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي . ځنګلي ، سابقې په طور راځي.

**ـــ شوتل** :- (ـــــ شو + ت + ل)(پ تر ، اس ، جم) د شوتلو په شان بوټي ، چې پخپله پیدا کېږي.(خود رو دے) او په پانو کښې ئې سرې کرښې شان وي.

**ـــ غنم** :- (ـــ غ + ن + م)(پ ، تر ، اس ، جم) مستک ، د غنمو په شان یو غله چې د غنمو یا د اوربشو په فصل کښې پیدا شي .دانه ئې د غنمو د دانې نه وړه او سپکه وي.خو ند ئې تریخ وي.

**لېوول** :- (لې + وَ + ؤ + ل)(مص)(و ـــ لېو کول).

**لېوونکے** :- (ل + ئ+ وو + ن + کے)(اس ، فا ، ج ـــ کي) عادتوونکے ، اموخته کوونکے.

**لېوونه** :- (لې + و + ؤ + نَ)(حمص) لېوَوَل ، لېو کونه ، ورننبلؤنه.

**لیوه** :- (لې + ؤ)(اس ، مذ ، ج ـــ گان) شرمخ ، ظالم ، زیاتے کوونکے . (طنزاً) بې ادبه ،غلط کار کوونکے ، خصوصاً د زور قوت واله کارونه، مطلق ځناور) د فوځ یو خاص قسم.

**لېوېدل** :- (لې + وې + د + ل)(مص)(و ـــ لېو کېدل).

**لیبل** :- (لې + ئ + ل)(مص) گواهي ورکول ، شاهدي کول.

**لیبه** :- (لې + يَ)(صف) بې کاره ، خوشے ، اواره.

**ـــ گرزېدل / گرځېدل** :- خوشے گرځېدل ، اواره گردي کول.

◈◈◈

# م

**م** :- (مِي + م) (حرف ،مذ ، ج ـــونه) د پښتو د الف پېنځۀ دېرشم توری ، د اردو يو دېرشم، د فارسي اتۀ ويشتم ، او د عربي پېنځۀ ويشتم توری دی .د ابجدو په حساب ددې توري قيمت څلوېښت (۴۰) دی .په عربي ليک کښې د ميم شکل د يوې وړوکې شان دائرې دی (o) ځکه شاعران د معشوقې خولې لـه ورسره تشبيهـ ورکوي .دا توری دوه شونډيځ (شفتي) دی .يعنې دواړو شونډو په انتهائي بهرنو ژيو ادا کېږي.

**م** :- (مِی + م) (اس ، مذ) ځينې وخت د محمدؐ مخفف ګڼلی شي .لکه : د ځينو مفسرينو په نزد په الٓمٓ کښې د ,, ميم ،، نه مراد محمدؐ دی.

**م** :- (مِي + م) (اس) د ,, مسيح ،، مخفف دی .د سن (کال) د ليک په وخت استعمالېږي .لکه : ق ـ م = قبل مسيح ، د مسيح د پېدا وښت نه دومره کاله پخوا . لکه ۵۰۰ ق م .د مسيح د پېدا وښت نه پېنځۀ سوه کاله اګاهو .

**م** :- (م) (توری) د نفي توری هم دی .چې ځينو فعلونو سره نښتی راځي. لکه : مکړه ، مسته ، خودا شان ليکل ئې صحيح نۀ دي .جدا حالت کښې ,,مه ،، ليکلی شي.

**م** :- (م) (حرف) د متکلم ضمير متصل دی .لکه راغلم . په فارسي کښې د لاحقې په طور استعمالېږي .او د تانيث د جوړولو کار ورکوي .لکه : بيګم ، خانم.

**م** :- (م) (لاحقه) يوه لاحقه ده چې عدد سره لګي نو د عددي صفت کار ورکوي . لکه دويم، دريم ، څلورم ، پنځم ، بره پښتونخوا کښې د ميم په ځای هم وئيلی او ليکلی شي.

**مآب** :- (م + ا + ب) (ع ، مذ) د راګرځيدلو ځای ، د ستنېدلو ځای .ځينو مرکباتو کښې استعمالېږي چې د لقب لفظ يا د عزت او احترام دپاره استعمالېږي .عزت مآب ، جلالتمآب.

**مــآثر** :- (م + آ + ثــر) (ع ، اس ،مــذ ، ج) (۱) ښــۀ کارونــه ، ښــې نخښــې (۲) يادګارونه ، نخښې ، کنډر (۳) خوبۍ (۴) حديثونه ، تاريخونه

**ما** :- (ما) اسم ضمير ، متکلم حالت فـاعلي ، (زمانه حال او ماضي) مونږ يا موږ (جمع) مخکښې يا روستو د ځينو الفاظو په زياتولو په زمانه کښې نۀ پاتې کېږي البته جمع ئې هره زمانه کښې دغه شان ده.

**ما** :- (ما) (هـ ،اس) په موسيقۍ کښې دڅلورم سُر نوم دی.
(سا ، رے ، ګا ، ما ، پا ، دا ..... )

**ما** :- (اسم ضمير ، جمع متکلم) د فارسي من (زۀ) جمع

**مابت** :- (ما + بَتْ) (اسم ، مذ) پښتنانۀ ئې د مهابت په ځای وائي.

**مابعد**:- (ما + بـع + د) (ع تر ، اس ، ظ) وروستو راتلونکے وخت يا څيـز ، لکه : دا لفظ او مابعد الفاظ ، د جنګ مابعد زمانه.

**مابقۍ د**:- (ما + ب + قا) (ع ، تر ، اس) څۀ چې يا کوم چې باقي پاتې شوې وي .وروستو پاتې ، مابقا ، جوته خوراک ، (اصلاً ,, ما به بقي ،، دی)

**مابوب** :- (ما + بو + ب) (اسم ، مذ) مؤنث ئې مابوبه دے چې پښتنانۀ يې د محبوب اور محبوبې په ځای وائي .

**مابوبا** :- (ما + بو + با) د ,, مابوبه ،، بدل شکل (و ــــ محبوبا)
زۀ يو اځې نۀ يم مابوبا ده راسره . (متل)

**مابوبه** :- (ما + بو + ب) (و ـــ محبوبه) په ځينو شعرونو کښې د ,, م + ح + بو + ب په تلفظ راغلی دے)

**مابين** :- (ما + بي + ن) (ع تر ، اس ، ظر) په مېنځ کښې .د دوه ؤ کسانو يا ډلو يا څيزونو په مېنځ کښې .محاورتاً د زمان معنې هم ورکوي .لکه : په دې مابين کښې يوه پېښه وشوه .يعني په دغه دوران کښې.

**مابۍ** :- (ما + بی) (اس ، مؤنث) د محبوبې وران شکل دے.

**ماپښين** :- (ما+پ +ښي + ن) (پ تر ،اس ، ظر) د ,, نماز سپشين ،، يو شکل دے .د زوال نه وروستو د نمونځ وخت.

**مايه** :- (ما + پ) (اس ، مو ، ج ـــ پې) ڨتې ، يو وړوکے شان ډوغل ، چې د غوزانو دغېره د لوبو دپاره جوړ کړے شي.

**مات** :- (ما+ ت) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) (۱) هغه څيز چې ثابت روغ نۀ وي . ټوټې شوے .شکسته .(۲) شکست (۳) هغه چې ماتې ئې موندلې وي . شکست خورد ، مغلوب ، (۴) رابرغډ

**ماتابه** :- (ما+تا +به) (اسم ، صفت ، مؤنث ، پ) د ,, ماه تابه ،، يا ,,ماهتابه ،، پښتو شکل دے .د څوارلسمې سپوږمۍ.

**مات ګوډ** :- (ما + ت + ګ + وډ) (اسم صفت ، مذه ، واحد ، ټــوټې ټــوټې ، خراب حالت کښې بې کاره.

**ماتاوۍ** :- (مـا + تـا + و + ئ) (اس ، مـو) ماتـابـۍ ، ماهتـابـۍ ، د اتش بـازۍ يـو بـارودي څيز دے .شُرشرۍ .شتۍ ,,ب ،، او ,,و ،، دوه شونډيځ فونيمونه دي څوک يو وائي او څوک دغه بل.

**ماتحت** :- ( ما + ت + ت) (اسم صفت) د لاس لاندې ، د حکم تابع ، لاندې

**ماتحته** :- (مـا + ت + ح + ت) (عـ پ تر ، اس مـو ، ج ـــ تې) د ,,ماتحت ،، تانيث دے

**ماتحتي** :- (مـا + ت + ح + تي) (اس، مـو) د بـل د حکم تر لاندې حالـت ، نائبت، نيابت.

**ماتر** :- (ما + تر) (اسم ، واحد ، مذ) لو نه پس درمند کښې د غوبلونو دپاره د جوړ کړې شوي ټوپ يا ډېري نه را بېـل کړې شوې هغـه غنم چې پرې ځاروي ګرځولے شي . د تازه تازه وادۀ شوي زلمي او د هغه د سخرانې تر مياڼځه هغه پرده کومه چې د دريمې په موقع د هغۀ خوابنې کره پـه ورتللو ماتـه شي .پښتو محاوره کښې دغه پردې ماتېدو ته ماتر ماتيدل وائي .او بيا زلمے دغلته ورتلو کښې شرم نۀ محسوسوي.

**ماتره** :- (ما + ت + را) (اس ، مع) د افريدو د علاقې د يو غر نوم دے.
د ماترې غاښې نېغ درومي اسمان ته
په خاتۀ خاتۀ لنډېږي باندې سپينې (خوشحال)

**ماتم** :- (ما + تم) (اسم ، واحد ، مذ ، فعل، جم، ماتميا) مصيبت ،غم،افت، وير ، واويلا.

**ــــــ خانه** :- (ـــــ خا + نَ)

**ــــــ کده** :- (ـــــ ک + د) (ف تر، اس ، مظر، مو، ج ـــ ې) (۱) هغه ځاے

چېرته چې د چا مړي ماتم روان وي .د مړي كور .(۲) د غم ځاے ، د مصيبت ځاے.

**ماتمي** :-(ما +ت + مي )(اسم ، صفت ، حالت فاعلي ) غم لړلے، وير لړلے، ماتم كوونكے.

**ماتو** :- (ما + تو ) (اس ، مو ، ج ـــ ګانې ) مېرمن ، بي بي ، د كور مالكه.

**ماتوالے** :- (ما + ت + وا + لے )(اسم صفت ، واحد ، مذ ) د مات نه مشتق دے .بدحالي ، بې وسي.

**ماتوره** :- (ما + تو + ره )(اس ، مو ، ج ـــ رې )كانيزه زمكه.

**ماتوړ** :- (ما + تو + ړ )(اس ، مذ ،ج ـــ ونه ) لوئے څټك ، د كاڼو د ماتولو څټك ، په غاښونو وغېره ټكړې ټكړې كول.

جهان درياب صورت جهاز اجل نهنګ دے ګوره
نهنګ به ئې مات كه كوم زمان د بېلتانۀ له تاخته (حافظ)

**ماتول** :- (ما + ت + و + ل )(مص ) ټوكړې كول ، دوه يا زياتې ټوټې كول، شكست وركول، ماتې وركول.مغلوب كول. خصوصاً د ځنګلي ځناور.
لكه : شرمخ ګډه ماته كړه.

څۀ شنواري څۀ مهمند څۀ افريدي وو
چې ئې مات كړ د صوبې واړه لښكر (خوشحال)

كندر كول ، لكه : نابلده غل د بورې كوټه ماتوي.(متل).

**ماتومے** :- (ما + تو + مے )(اس ، مذ ، ج ـــ مي ) دلالي ،كمېشن.

**ماتونه** :- (ما ت + و + نه )(حمص ) ماتول ،ځينې لهجې واله د ,,ن،، په ځاے ,,ن،، وائي.څيز يو دے.

**ماته** :- (ما + ته )(پ تر ، تف )(۱) زما طرف ته (۲) ما لره ، ماله (۳) د ,,مات ،، مؤنث دے.

**ماته** :- (ما + ته )(اسم صفت ، فعل ، مونث )(۱) د فعل مصدر ,,ماتېدل ،،. اسم صفت ماته كوزه ، پيالى ، ملا ، ملا ماتے كېدل ، د چا د كمال بچے ، بچي مړۀ كړېدل.(۲) مروتو كښې ,,ماته ،، ، سادين ته هم وئيلے شي.(۳) شكست چې ,,ماتې ،، هم وئيلے شي.

**ماتې ګوډې** :- (ما+تې +ګو+ډې ) د ماته ګوډه جمع ده.كار روزګار.

كــــه نظر په ماتو ګوډو د روزګار كړې
هومره نۀ دي چې حساب او يا شمار كړې (رحمان بابا)

**ماتېدل** :- (ما + تې + دل )(مص )اوګورئ ,,د مات لاندې ،، ، په چاخولې راتلل ، محاورتاً وېره اخستل ،ملامته كېدل.

**ماتېدونكے** :- (ما + تې + دو + ن + كے )(اس ، مف ، ج ـــ كي ) ټوټې كېدونكے ، ټكړې كېدونكے.هغه څۀ چې ماتېدلو واله وي.هغه څۀ چې ماتېدے شي.

**ماتېدۀ** :- (ما + تې + دۀ )(حمص ) ماتېدل ، ځينې خلق فعلونه نيمګړي وائي. دا هم هغه انداز دے.

**ماتېرياليستي** :ـ (و ــ مېټيريلستي)Materalism.ماده پرستي.

**ماتے** :- (ما + تے )(اسم ، واحد ، مذكر ) هورهوركے ، جګنو.

**ماټ** :- (ما + ټ ) (اسم واحد ، هـ ) (۱) خُم (۲) غټه چاټى يا غټ منګے (۳) د هندوستان د متهرې نومې ضلعې نوم دے او د دغه ضلعې دار الخلافه هم ده.

**ماټا نزاس** :- (ما + ټا + ن + زاس )(اسم ، ظرف ) د جزيره كيوبا د يوې صوبې نوم دے

**ماټر** :- (ما + ټر ) (اسم ، ظرف ) د هندوستان په ضلع كيره كښې د يو ښارېي نوم دے

**ماټس** :- (ما + ټ /ټُ + س )(اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) ورم ، پړښـــوب ، چې د ګذار خوړلو په وجه پېدا شي.

**ماټو** :- (ما + ټو )(انګ ، اس ، مذ ) هغه نعره يا فقره كومه چې يو پارټۍ يا جماعت د ځان د پاره مخصوصه كړې وي او د دغه جماعت د عمل اصول څرګندوي.شعار ، وېنا ، نعره ، غږ ، نخښان.

**ماټور** :- (ما + ټ + و + ر )(اس ، مذ )(۱) هغه سړے چې د ډېرې د زنې وېښتۀ ئې خرئيلي وي او دواړو اړخونو ته ئې پرېښودې وي .(۲) ځوښوكى.

**ماټوره** :- (ما + ټو + ره ) (صف ، مو )(۱) بدهضمي (۲) د ډېر خوراک په وجه نور ته زړۀ نۀ كېدل.

**ماټوس** :-(ما + ټو + س )(اسم ، واحد ، مذكر ) رسولى ، غټه دانه ، (وګورئ پوپكه).

**ماټوي** :- (ما + ټ + وي )(اس مو ) (۱) د تندي يو كالے دے چې د سرو زرو نه جوړولے شي .په تندي باندې تر غوږونو پورې د قوس (هلال يا ليندې ) په شكل كښې اغوستلے شي (۲) سرپېچک.

**ماټې** :- (ما + ټې )(اس ، مذ )(۱) د ډېرې د وېښتو يو ډول .چې د برېتو د سمون نه بره خو پرېښودے شي.خو په زنه خرئيلے شوي وي.(۲) د زنانۀ كمڅى.شوي وېښتۀ چې د مخ دواړو غاړو ته ښكته تر سينې پورې را ځوړندې وي.

هغه ځاے چې مې د زلفو بازار خور شي
هغه ځـــاے مې د ماټيو تش بازار دے (خوشحال)

(۳) خاوره ، ګرد ، دوړه ، زمكه (۴) لړشان ، يو پوټے.

**ماټې** :- (ما + ټې )(هـ ، اس ، مو )(۱) وړوكے مټ (منګوټے ) .وړوكے خُم . دوېې.(۲) لويه ارت خولې كوزه (هـ .مټ په خم ).

**ماثور** :-(ما + ثو + ر )(ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه ) هغه (خبره ) چې د حديث نه معلوم شي.لكه : ماثوره دعاګانې.

**ماجب** :- (ما+جب )(اس ، مذ ، ج ـــ ونه )(۱) مواجب ، تنخواه ، وظيفه ، شاهره .(۲) چې څوک كار نۀ كوي او تنخواه اخلي نو طنزاً او محاورتاً هغې ته ماجب وئيلے شي.

**ماجت** :- (ما + جت )(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه ) ځينې خلق ماجت ،مسجد ، جومات، جماعت.

**ماجد** :- (ما + جد )(اسم ، صف ، مذ ) قدرمند ،عزتمند ،محترم،مؤنث : ماجده .لكه : والد ماجد او والده ماجده . اَلْمَاجَدُ :د الله پاک يو نوم هم دے.

**ماجد** :- (ما + جد )(ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه ) بزرګى واله ، بزرګوار ، شان شوكت واله .عموماً پلار (والد ) يا مور (والده ) سره (ماجده ) د عزت په توګه وئيلے شي.

**ماجر** :- (ما + جر )(اسم ، واحد ، مذ ) د هديرې چار ديوارې يا سينه پناهي.

**ماجرا / ماجره** :- (ما + ج + ر )(ع ،اس،مو، ج ـــ رې ) (۱)قيصه ، واقعه ، هر څۀ چې تېر شول.په سر تېر شوے حال.د واقعې بيان (۲) حادثه ، اتفاق.

**ماجرا** :- (ما + ج + را )(اسم ، واحد ، مؤنث )(۱) قيصه ، واقعه ، حالت (۲) فارسى كښې مهم يا سخت كار ته هم وائي.

**ماجورا** :- (ما + جو + را ) اسم ظرف ) په اټلي كښې د يو تالاؤ نوم دے چې د رې اتيا ميله اوږد دے.

**ماڅو** :- (ما + څو )(اس جم ) مشهوره دوائي ده.ماجو هم وئيلے شي.

**ماڅو** :- (ما + څو )(اسم،مذ،واحد ) د هنديانو ماجو.د يو ونې مېوه ده چې د دارو په توګه استعمالېږي.

**ماځيګر** :- (ما + ځي + ګ + ر)(اس ، مذ ، ج ــــ ي) د نمازديګر نه مفغن دے۔ هغه وخت کله چې نمر په زيږي شي۔ د عصر وخت۔

**ماځيګرنے** :- (ما + ځي + ګر + نے)(صف ، مذ ، مو ، ج ــــ ني) د مازديګر وخت سره تعلق لرونکے۔ مازديګر (عصر) ته منسوب۔

**ماچاپنے** :- (ما + چا + پنے)(اسم ، واحد ، مذ) ترنکوځه، مچوغنه ، مچنوغزه ، مشنوغزه ،مشوغنه۔

**ماچس** :- (ما + چس)(اس ، مذ ، واحد ، جمع) د هور بلولو د تيلو ډبلے ، د هور بلولو تيلے۔

**ماچلی** :- (ما + چ + لی) خالي کارتوس ، توکه ، کوکه۔

**ماچوڼ ګڼ** :- (ما + چوڼ ، ګڼ)(اسم ، مذ) کرړے يا کيرړه۔

**ماچه** :- (ما + چه)(اسم ، واحد ، مؤنث) (۱) پله ، پته (۲) سودا ، د څيز يا مال په بدل کښې سودا۔ اوګورئ ،،مارچه ،،۔

**ماچي** :- (ما + چي)(اس ، جم) مېنچې۔

**ماچين** :- (ما + چي +ن)(اس ،مع) د چين ملک ، د تاتار ملک ،په پښتوکښې عموماً ,,چين،، سره يوځاے راځي (اصلاً دا لفظ په سنسکرت کښې ,,مهاچين،، وو)۔

**ماڅی** :- (ما + تسی)(اس ، مؤنث)(۱) ځينې خلق ورته ماڅی او يا پيچه هم وائي۔ د زيړ رنګ بې پاڼو ځېلدار يا جرړي جرړي بوټي دے چې په ونو بوټو واچولے شي نو ورپورې اونښلي زياتېږي او پرې خوربږي۔ تر دې چې بوټے راګېر کړي۔ ترقي ته ئې نۀ پرېږدي يا ئې اوچ کړي۔ (۲) پربوتې ، پېرونه۔

**ماحول** :- (ما + حو + ل)(ع ، تر ، اس ظر) چاپېرچل،خواوشا،چاپېريال۔

**ماحي** :- (ما + حي)(ع ، اس ، مذ)(۱) محو کوونکے،لرے کوونکے، ورانه وونکے ،ختمونکے(۲) د الله پاک يو نوم دے۔

مے د ساقي صيقل د زنګ سينې ماحي د کينې
صوفي صفــا به دې حاصل شي له دغه شرابه (حافظ)

**ماخذ** :- (ما + خ + ذ)(ع ، اس ، فا ، ج ــ ونه / ماخذ) (۱) هغه ځاے يا کتاب يا بله حواله چې ترې څۀ معلومات راخستے شوي وي (۲) هغه ځاےچېرته نه چې کوم څيز راووځي۔منبع ، سرچينه (۳) اصل ، جره۔

**ماخوری** :- (ما +خو + ری)(اسم واحد ، جمع ، مؤنث) مار خوری چمچکے ، کربوړے۔

**ماخی** :- (ما + خی)(اس ، مو)(۱) يو غريځ ازغن / اغزن بوټے دے۔چې د خشاک دپاره پکارېږي۔(۲) يو قسم ځوځ چې ازغن ګل ئې په تخم شي نو ماشومان ئې خوري۔ د ازغو مېنځ کښې ځينې کښې سرۀ او ځينې کښې سپين وبښتۀ وي۔تري چکی ورته وارۀ وائي۔(۳) د ميږي يو بوټے چې اوبنان ئې هم خوري او د سوانې په کار هم راځي۔

**ماداينې** :- (ماد + اي + ني)(اسم ، واحد ، مذ) د يو ايراني مؤرخ نوم دے۔

**ماداري پور** :- (ما + دا + ري + پور)(اسم ظرف ، مذ) هندوستان کښې د فريدپورضلعي ديوې ښارئې نوم دے۔

**مادح** :- (ما + د + ح)(ع ، اس ، مذ ، ج ــ ان ، مو ــ ه) مدح کوونکے ، صفت کوونکے ، پښتانۀ ورته مدح خوان وائي۔

**مادر** :- (ما + در)(اسم ، مؤنث ، ف) مور ، ابې۔

**مادرزاد** :- (ما + در + زاد)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ــ ه) پيدائشي ، فطرتي ، قدرتي۔لکه : پيدائشي ړوند يا ګوډ۔

هغه مخ چې مادرزاد ښائسته نۀ وي
مــشقت د مــشاطې وارۀ مردار کا (رحمان بابا)

**مادګي** :- (ما + د + ګي)(اس ، صفت ، مو)(۱) ښځه والے ، ماده والے ، ښځتوب (۲) بې کاري ،سستي ، هجړاتوب۔

**مادنګے** :- (ما + دن + ګے)(اس ، مذ ، ج ــــ ګي / ان)(۱) ښځونک ،جينې خُلې (۲) سست پست سړے ، کاهل ، بېکاره۔(۳) هغه سړے چې د باه قوت ئې نۀ وي پاتې شوے۔

**ماده** :- (ما + ده)(ف ، اس ، مو) ښځه ، (د نر په مقابله کښې) خو د ځناورو يا د ونو او مارغانو د ښځې دپاره استعمالېږي۔

**ماده** :- (ما + ده)(ع ، اس ، مو ، ج ــــ دې)(۱) هر هغه څيز چې ليدے شي ، نيوے کېدے نۀ شي نۀ محسوسېدے شي ماده په دريو حالتونو کښې کېدے شي۔په کوټلې يا جامد حالت کښې ، په مائع او اوبۀ او په هوا يا ګيس په حالت کښې ۔(۲) د هر څيز اصل ، چې ترې نه نور څيزونه جوړولے شي ۔(۳) جوهر ، قابليت ، صلاحيت (۴) ماخذ ،اصل ،منبع (۵) عقل او ادراک ، په کومه خبره پوهېدلو اهليت ۔ (۶) جسم ، وجود (۷) د ائين يا دستور او قانون دفعه۔

**مادي** :- (ما + دي)(ع ، صف) مادې سره تعلق لرونکے ، محاورتاً دنياوي مادي مينه ، ماده پرستي يا دنيا پرستي۔

**ماديت** :- (ما دي + يت)(ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه / ات) د روحانيت ضد دے۔ وجود لرنه۔

**ماډرن** :- (ما + ډ + رن)(انګ) د نوې زمانې ، نوے۔

**ماډل** :- (ما + ډل)(انګ ، اس ، مذ ، ــــــ ونه)(۱) سانچه ، قالب ، نمونه ، نقشه ، طور طريقه۔(۲) کچ ، پيمانه او مقياس۔

**مادنه** :- (ما + ذۀ + نه)(اسم ، واحد ، مؤنث) مناره ، موناره۔

**ماذون** :- (ما + ذو + ن)(ع)(۱) اذن ورکړے شوے ، اجازه ورکړې شوې ۔هغه کس چې د کوم کار اجازت ورکړے شوے وي ۔(۲) خليفه (۳) هغه څوک چې ورته اذن يا اجازت ورکړے شوے وي۔خصوصاً د سلوک په اصطلاح کښې د هغه مريد دپاره استعمالېږي چې د مريدانو جوړولو او سبقونو ورکولو اجازت ورته شوے وي۔

**مار** :- (ما + ر)(هـ ، لاحقه)(۱) لاحقه۔چې اسم سره اولګي نو اسم فاعل جوړ کړي ۔(۲) ځينې اسمونو سره چې اولګي نو د ,,دار،، معنٰی ورکوي او ,,حامل،، جوړوي۔ لکه : ختمار ، داړه مار ، ډولکي مار ، شوک مار اونور۔ (۳) لکي مار ،سوټمار ،جولې مار او نور۔

**مار** :- (ما + ر)(اس ، مذ ، ج ــــ ان)(۱) مشهور زهرناک ښوئېدونکے حيوان يا چينجے (اُر ۔ سانپ)(۲) منګرے ،منګور يا منګوڼ۔ پښتو متل : مار خوړلے د پړې نه هم ويرېږي۔

مار چې سوړې لره ورشي نو نېغېږي
تۀ د ګور خونې له ورغلې نېغ نۀ شوې (رحمان بابا)

**مارا** :- (ما + را)(پ تر ، محاوره) د ,, ماته راکړه ،، يا ,, ماله راکړه،، مخفف دے۔دغه ,,ماره ،، هم وئيلے شي۔

**ـــــ افسون** :- (ـــ (رې) ا + ف + سو + ن)(ف تر ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه)د جادو مار ، د دروغنو مار۔

**مار باغ** :- (ما + ر + با + غ)(اس ، مذ) يو غرئيز بوټے دے چې پلنې پاڼې لري او د لويو لويو تږو په مېنځ کښې کېږي۔

**ـــــ بچوړے** :- (ـــ بچ + ړے)(و ـــ مار بچوړے)(۱) د مار وړوکے بچے (۲) محاورتاً : دښمن۔دښمن بچے۔زهرژن دښمن۔(۳) يو قسم متيابي ، خومې مينچې۔

**ماربل** :- (ما + ر + بل)(انګ ، اس ، مذ) سنګ مر مر ۔مرمر نومې کاڼے ، ګټه ، تيږه۔

**ـــــ پيچ** :- (ـــ پې + چ)(ف تر ، اس ، مذ)(۱) تور ځونډے يا سونډے

کوم چې د جنډې په سر لګولے شي۔(۲) د مار په شان تاؤ راتاؤ (۳) کږه وږه لار۔

**مارتړ** :- (ما + ر + تړ)(انګ ، اس ، مذ ، ج ـــونه) وړوکې توپه ،مارټرګن ،د غټ ټوپک يا وړوکې توپې نوم دے۔

**مارټوکے** :- (ما + ر + ټو + کے)(پ تر ، اس ، مذ) مارچونه ، يوقسم سبزي ده چې خوړے هم شي او په دارو کښې هم پکارولے شي۔شکل ئې د مار په شان وي۔

**ـــجړې** :- (ـــج + ړې)(پ تر ، اس ، مو)(۱) د زهر مهرې بوټے۔ترياق يا ترياق۔(۲) مارجاړې يعني د مار خوړۀ د علاج بوټے۔

**ـــجونګړ** :- (ـــجو + ن + ګړ)(پ تر،اس،مذ، ج ـــان) يو حشره (چينجے مينجے) ده۔چې د مار په شکل وي۔

**مارچ** :- (مار + چ)(اسم ، مذ ، انګ)(۱) د عيسوي کال دريمه مياشت (۲) د فوځ يا پوليس يا بل فورس پرېډ ۔ (۳) د خلقو (عوامو) له خوا په ګډه يو خاص مقام ته تګ ، لکه : لانګ مارچ ،ټرين مارچ او نور۔

**مارچوب** :- (ما+ر+چو+ب)(واحد ،اسم مذ) چوب (فارسي) يو لرګے چې د مار په رنګ او شان برګ بروګ وي اکثر ترې عصاګانې جوړولے شي۔

**مارچونړے** :- (مار + چون + ړے)(اسم ، واحد ، مذ) د ګل رژېدلې پاڼه ، مارچونړې يو علاقايي ټکے دے۔

**مارچه** :- (ما + ر + چه)(اسم،مو،واحد ،فعل) بدلول۔ د دوه کسو خپلو کښې څيزونه سره بدلول ۔خصوصاً هغه وخت چې څيزونه سره برابر او بدلون سر په سر نۀ وي۔يعني يو څيز سره کوم بل څيز يا نغدې هم وي۔

**مارخوه** :- (ما + ر + خُ + وه)(اس ، . جم) شاهتره هم ورته وائي۔يو وړوکے بوټے دے چې د پېښور په سيمه سپرلي کښې د غنمو په فصل او پولو کېږي او د خارښ غوندې بيمارو دپاره د دارو په توګه خوړلے هم شي او بۀ ئې هم څښلے شي۔

**مارخور** :- (ما+ ر+خو + ر)(ف پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــان) يو قسم غرئيز بيز يا ګډ دے۔ګوزنډهوسۍ يو قسم دے۔

**مار خورکه** :- (ما + ر + خو + ر + که)(اسم،واحد ،مونث) يو قسم مارغۀ چې ماران خوري۔

**مارخورې** :- (ما + ر + خ + وه + رې)(اسم،واحد ،مونث)بيبياتو، پاتوپېنځه ، پاتو ګودۍ،څرمبنکۍ، چمچکۍ۔په کورونو کښې اوسېدونکے د کربوړې په شان خناور دے چې رڼا له راغلي پتنګان او مولخان مچان رانيسي خوري۔

**مار دندان** :- (ما + ر + د ن + دا + ن)(ف،اس،واحد ،مذ) جمدر ، جودر ، جوندر ، د غنمو فصل سره کېدونکے د همدغه قد او دغه شان پاڼو لرونکے بوټے دے خو د تخم وړے ئې نرے لشه دار وي۔خودرو دے خو بنۀ ګياه ده او تخم ئې مستک بللے شي۔

**ماردنګۍ** :- (ما + ر + دن + ګۍ)(اس ، مو) ډيوټ ، شمعدان۔

**ما رش** :- (ما + ر + ش)(اس ، مذ) د انګرېزۍ د ,, مارچ ،، عربي ده ۔عربۍ کښې معنٰی ئې په فوځي ډول تګ جوړېږي۔

**مارشال** :- (ما + ر + شا + ل)۔

**مارشل** :- (ـــــش + ل)(انګ ، اس ، مذ) د لوېې مرتبې يا درجې فوځي افسر۔

**مارشل** :- (مار + شل)(انګ ، اس ، مذ)(۱) جنګيال ، مېړنے (۲) فوځي افسر ، سرلښکر۔

**ائير ـــ** :- (ا ے + ي + ر ـــ)(انګ تر ، اس) د هوائي فوځ د ټولو نه لوے افسر۔د هوائي فوځ سرلښکر۔

**فيلډ ـــ** :-(في + ل + ډ ـــ)(انګ تر،اس ، مذ) د مېداني فوځ د ټولو نه لوے افسر۔

**کورټ ـــ** :- (کو + ر /ړ + ټ ـــــ)(انګ ، اس ، مذ) د فوځي قانون تر لاندې سزا ورکونه۔

**ـــ لا** :- (ـــــلا)(اس ، مو) فوځي قانون ، د سول قانون په مقابله کښې چې ټول اختيارات فوځ په لاس کښې واخلي۔

**مارغۀ** :- (مار + غۀ)(اس ، مذ ، ج ـــــ ان) هر وزر لرونکے حېوان چې هوا کښې الوځي۔پښتو کښې په مارغۀ بللے شي۔اسم عام دے جمع ئې ده ,,مارغان ،، ۔محاورتاً بې ,, وزرو مارغۀ وئيلے شي۔کله چې څوک تېز يا زرچېرته اورسي يا ډېره فاصله اووهي بل منزل ته اورسي نو وائي ,, انسان بې وزرو مارغۀ دے۔لږ وخت يا په فلانې وختچېرته وۀ او اوسچېرته دے/دي ،، ۔

**مارغيت** :- (ما + ر + غي + ت)(اس ، مذ ، ج ـــونه) دوکـه، فرېب ، مکر ، چل ول ، ټګي، ټګي برګي۔

**مارغيتل** :- (ما + ر + غي + تل)(اس ، مذ) ټګي ژن ، چل ولي ، دوکه باز ، فريبي ، مکار۔

**مارغيتے** :- (مار+ غي + تے)(اسم ، مذ، واحد) وګورئ د مارغيتل معنٰی۔

**مارفيا** :- (ما + ر + في + يا)(انګ،اس،مو) د افيمو ست ،مورفين ، يو نشه راوستونکې دوائي چې د افيمو نه / څخه جوړولے شي۔

**مارک** :- (ما + ر + ک)(انګ ، اسم ، واحد ، مذ)(۱) د جرمن سکه (۲)داغ ، نخښه (۳) نمبرې چې د امتحان يا ازموئينې په وخت د سوال په جواب ورکولے شي۔(۴) د سرو سپينو زرو پيمانه۔(۵) مارک اپ يعني سود يا منافع چې بينکونه ئې اخلي۔

**مارکب** :- (ما + ر + کب)(اسم ، واحد ، مذ) مارمهۍ ، مارموهۍ ، د کب يا مهيانو يو قسم دے چې د مار په شکل وي۔

**مارکر** :- (ما + ر + کر)(اسم ، واحد ، مذ)(۱) نخښه لګونکے ۔ (۲) ډډون وهونکے،يا لټون وهونکے۔(۳) د ټېنس او دغسې د نورو لوبو د لوبغاړو د سامان انتظام کوونکے۔

**مارکست** :- (مار + کس + ست)۔

**مارکسټ** :- (ـــــــټ)(فر ، انګ ، تر ، اس ، مذ) هغه سړے چې د کارل مارکس د نظريې پېروکار وي۔کميونسټ۔د اشتمالي نظريې پېروکار۔ (مارکسيسټ هم ليکلے شي)۔

**ما رکسستي** :- (مار + ک + س + س + تي)۔

**مارکسستي** :- (ـــــتي) د کارل مارکس د نظريې سره تعلق لرونکے ۔د کميونزم نظريې سره تعلق لرونکے ۔ (مارکسيستي هم ليکلے شي)۔

**مارکسزم** :- (ما + ر + ک + س + زم)(انګ ، اس ، مذ) د کارل مارکس په نظرياتو مبني عقيده۔اشتماليت ، کميونزم۔

**مارکونړې** :- (ما + ر + کون + ړې)(اس ، مو) يو قسم اغزن ، ازغن بوټے دے۔چې تخم ئې غونډ او ازغن وي او څوک چې دغه بوټو کښې ګرځي نو جامو سره ئې نښلي۔مالکونړې هم ورته وئيلے شي۔نباتاتي نوم ئې ټربولس ټېرسټرس (Tribulus Terrestris)۔

**مارکه** :- (ما + ر + که)(اسم، واحد، مو، مذ)(۱) نخښه يا علامت ، د يوې کمپنۍ تجارتي تخنبه ، د يوې کارخانې د مختلفو مصنوعاتو چې دغه څيز او دغې جوړونکې کارخانه پرې پېژندے شي ۔لکه: پيشو مارکه صابون ، شمع مارکه غوړي او نور(۲) امام باړه۔

**مارکيټ** :- (ما +ر + کي + ټ)(انګ ، اس ، مذ ، ج ـــونه) بازار ، منډۍ ، د څيزونو د خرڅولو ځاے يا مرکز چې ډېر دوکانونه لري او د ضرورت د سامان د تر لاسه کېدلو ډېر ګنجائش په کښې وي۔

**مارکيټنګ** :- (مار + کي + ټنګ)(انګ ، اس ، مذ) د مارکيټ څخه دے ۔د مارکيټ يا تجارت کار کول۔

**مارګزنډۍ**:- (مار + ګزن + ډۍ) (اسم ، واحد ، جمع ، مونث) د ماشومانو یا ورو د یوې لوبې نوم دے۔

**مارګونۍ**:- (مار + ګ + نۍ) (اس ، مذ) اوګورئ مارکونډۍ۔

**مارګه**:- (ما + ر + ګه) (اس ، مو) (۱) بغوټ ، ځبلې ، چې په مرۍ کښې پيدا کېږي۔بغوټيي۔ (۲) یو قسم مرغۍ۔

**مارګیر**:- (ما + ر+ګي + ر) (ف تر ،اس ، مذ ،ج ـــ ان ، مو ــ ه) پاړو ، ماران نیوونکے۔

**مارل**:- (ما + رل) (مص) ګمارل ، مقرورل ، په کار لګول۔میرل۔

**مارلے**:-(ما + ر + لے) (اس ، مف ، ج ـــ لي) ګمارلے ، مقرر کړے شوے ۔ مامور په کار لګولے شوے۔

**مارماهي**:- مار + ما + هی) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــ هی) د کبانو (مهیانو) یو قسم چې د مار په شان وي۔مارمهی ، مارموهی۔

**مارمړے**:- (ما + ر + م + ړے) (اس ، مذ) یو قسم بوټے دے چې خلق ئې ماستو سره خوري۔کاکتی ، سراب۔

**مارمولک**:-(ما + ر + مو + لک) (اس،مذ، ج ـــ ونه) (۱) لویه ځرمبنکۍ ، (۲) ځمځره

**مارمولے**:- (مار + مو + لے) (اس،واحد ،مذ) ارمولے هم ورته وائي -د ماشومانو یوه بیماري ، د ماشومانو د خېټې یا د ستونو رنځ۔

**مارمهره**:- (مار + مهـ + ره) (ف تر، اسم ، واحد ،مو) مارموره ، مار مرۍ ، هغه مهره چې د مار په سر کښې وي او هم د زهرو اثر ختموي۔ تریاق۔

**مارمهي**:- (مار + م + هې) (اسم ، مذ) (و ـــ مارماهي)۔

**مارنه**:- (ما + ر + نه) (حمص) ګمارنه،مقررونه،مامورول۔

**مارویات**:- (ما + رو + یا + ت) (اس ، مذ) مسورو دال ، نسک۔

**ماروت**:-(ما + رو + ت) (اس ، مع) وائي چې هاروت او ماروت دوه فرښتې۔

**ماره**:- (ما + ره) (اسم ، فعل ، مو ، جمع ، ماري) وهنه ، داړه ، لوټ مار ، ښکار ، مار داړه ۔په غلطه طریقه یعني په زور یا دوکه او په تګۍ ځۀ ځیز یا فائده تر لاسه کول۔دا د اردو یا هندي د ,,مارنا،، ځخه دے۔

**ماري**:- (ما + ري) (اسم ، فاعل) هوا کښې خلاصه شوې ګوډۍ ۔هوا کښې ازاد شوې کاغذ پتنګ چې تار یا مانجه ئې شلېدلې دبلې ګوډۍ په تار وهلې شوې وي۔ ګرندے اوبښ۔

**ماړوب**:-(ما + ړو + ب) (صف ،مذ ، مو ـــ ه) اوبۀ شوے ، سېراب ، مړوب۔

**ماړوندۍ**:- (ما + ړ + ون + دۍ) (اوګورئ مړوندۍ)۔

**ماړۀ**:- (ما + ړۀ) (صف ، ج) د ,, موړ ،، جمع ده ۔په خېټه موړ ، (محاورتاً) مالداره ، دولتمند ، شتۀ مند ۔

**ماړي**:- (ما + ړي) (و ـــ مړي یا نمړئ)۔

**مازپښین**:- (ما + ز + پ + ښي + ن) (اسم ، واحد ، مذ) ماپښین ، نمازپښین ، د نمر د زوال نه پس وخت۔زوال نه پس۔د پرېوتلو په لار چې نمر د خپلې لارې نیمې ته راشي ، تر هغه وخته۔

**مازخُتن**:- (ما + ز + خُ + تن) (اسم ، اس ، صفت، د وخت ، ظرف زمان ـــ واحد ، مذ) عشاء ، (عربي) ۔ ماسختن یا خُستن ، د مابنام د ختمېدلو نه پس داخلېدلو واله وخت چې تیارۀ خوره شوې وي او سرخي د رڼایۍ ختمه شوې وي۔د فارسي د خفتن ځخه دے۔

**مازدیګر**:- (ما + ز + دي + ګر) د مازپښین نه پس وخت چې تر نمر پرېواتۀ پورې وي او د مابنام په داخلېدلو ختم شي۔

**زیړے ـــ**:- کوز مازدیګر هم وئیلے شي۔مطلب د مازدیګر اخري وخت۔ چې نمر زیړ او پرېوتلو ته نژدې وي۔

**لوړ ـــ**:- د مازدیګر اول وخت چې تازه مازدیګر داخل شوے وي۔

**مازغۀ**:- (ما + ز + غۀ) (اسم ، واحد ، مذ) مغز ، دماغ ، ماغزۀ هم وئیلے شي۔ د انسان او هر ذي روح په سر کښې دننه نازک اندام۔

**مازیګر**:- (ما + زي + ګ + ر) (اس ، ظر) د نمازدیګر ځخه دے۔

**مازیګر**:- (ما + زي + ګر) اوګورئ مازدیګر۔

**مازیګرنۍ**:-(ما + زي + ګر + ن + ۍ) (صف ، مو) د ,, مازیګرنے ،، تانیث دے۔لکه : مازیګرنۍ خبره۔

**مازیګرني**:- (ما + زي + ګر + ني) د ,, مازیګرنے ،، جمع ده۔

**مازیګرنے**:- (ما + زي+ ګر + نے) (صف ،مذ ،ج ـــ ني) د مازیګر د وخت سره تعلق لرونکے۔لکه : مازیګرنے دعوت ، پخلے او نور۔

**ماژ**:- (ما + ژ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) (۱) ګڼه یا ګډوړے ۔(۲) ,, مړ ،، چې ځینې (سویلي) پښتانۀ ئې ,,مژ،، وائي او د ځینې لهجو خلق ئې ,, م ،، اوچت وائي او ,,ماړ ،، یا ,,ماژ ،، ترې جوړوي ۔مؤنث ئې مېږه یا مژه / ماژه۔

**ماس**:- (ما + س) (اسم ، مذ ، هـ) (۱) غوښه (۲) میاشت خو مرکب حالت کښې لکه ,,باره ماسا ،، یعني دولس میاشتې او نور ۔(۳) لوے برېټ یا د برېټو خط یعني شونډه شنه کېدل۔(۴) پرځوب۔

**ماس پښین**:-(ما+س + پ + ښي + ن) (اس،ظر، زمان) د زوال نه پس د نمونځ وخت ، د ظهر وخت ۔,, مازپښین ،، یا ,,نمازپښین ،، هم ورته وئیلے شي۔

**ماستۀ**:- (ما + س + تۀ) (اس ، جم) چکه ، ورغلې پې۔

**ماسټر**:- (ما + س + ټ + ر) (انګ،اس،مذ، ج ـــ ان) (۱)استاد ، معلم (۲) مالک ، خاوند (۳) د کوم کار ماهر لکه : درزي (۴) اصل یا لوے

**ماسختن**:- (ما + س + خ + ن) (اس ، ظر )اوګورئ مازختن۔

**ماسک**:- (ما + س + ک) (انګ ،اس،مذ ، ج ، ماسکونه) پوزه او خولۀ د ګېسونو او ګردونو نه محفوظ ساتونکې اله۔

**ماس که**:- (ما + س + کَ) (انګ،اس،مو، ج ـــ کې) هغه کپړه وغېره چې مخ پوزه پرې پټولے شي۔

**ماسکه**:-(ما + س + ک) (ع ، اس ، مو) د معدې هغه قوت یا اهلیت چې خوراک د هضمېدلو دپاره ایساروي۔

**ماسل**:-(ما + سل) (اسم ، واحد ، مذکر) د مال د محکمې ملازم ، د محصل مفغن۔

**ماسوا**:- (ما + س + وا) (ع تر ،د استثنا توري) د عربي د ,,ماسواۀ ،، صورت دے۔هغه چې دې نه علاوه دي / دے۔

**ماسوا**:- (ما + سي + وا) (اسم، صفت ، واحد) دې سره سره ، پرته ددې یعني ددې نه علاوه۔

**ماسه**:-(ما + سه) (اسم ، واحد ، مؤنث) د تولې دولسمه حصه چې په کښې اتۀ رتۍ وي۔

**ماسۍ**:- (ما + سۍ) (اسم ، جمع ، مؤنث) موزې ، یعني د ځرمنې جرابې۔

**ماش**:- (ما + ش) (اسم ، مذ ، مؤنث) د دالو یو قسم ، مهې ، نباتاتي نوم فے سی لس میکس یا ریډي یاټس (Phaseolusax or Radiatus)۔

**ماشاء الله**:- (ما + شا + ال + لاه) هغه چې د خدائے خوښه وي۔د خوشګوار حېرت په وخت وئیلے کېږي۔د ښۀ یا د خوشحالۍ د خبرې اورېدو په موقع۔

**ماشرنګ**:- (ما + ش + ر + ن + ګ) (اس،مذ ،ج ـــ ونه) د یو ګل نوم دے ۔ چې مشنګ (م شنګ) هم ورته وئیلے شي۔

د ماشرنګ او د چنبېل روزګار خراب شۀ
رامبېل ډوب د غم په زمکه لکه آب شۀ (جهاندار شهزاده)

**ماشله** :- (ما + ش + ل) (اس ، مو ، ج ـــ لې) ماشوړه.

**ماشوړه** :- (ما + شو + ړه) (اس ، مو ، ج ـــــ ړې) د سپېڅو نه په څرخه جوړه شوې د تار ګونجی.

**ماشومه** :- (ما + شو + مه) (اس مو ، ج ـــــ انې) د ,,ماشوم ،، تانيث دے. د غېږې يا وړه جينۍ.

**ماشه** :- (ما + شه) (اسم ، واحد ، مؤنث) (۱) د تولې دولسمه حصه ، د اتۀ رتو برابر وي .(۲) د ټوپک تماچې په شپېلۍ باندې د شيش دپاره لګېدلې دانه يا زخه (۳) په ټوپک کښې لګېدلے کوترے (کنډېدار مېخ) چې په زور ورکولو سره ئې ډزې کېږي (۴) د زخم پوټکے.

**ماشے** :- (ما + شے) (اس ، مذ ، ج ، شې) مشهور الوتونکے نرے شان چينجے يا حشره چې په سخا اوبو او ډنډونو کښې پيدا کېږي او د بني ادمانو وينې څښي اوځيني مليرياهم خوروي. مروت ورته مياسے وائي.

**ماښام** :- (ما + خا / شا + م) (اس ، ظر ، مذ ، ج ـــــ ونه) اصلاً نماز ښام دے ، مازيګر تېرېدلو نه وروستو د نمر پرېواتۀ نه پس وخت . په ځينو موقعو ,,ماښامے ،، هم ورته وئيلې شي. لکه : ,,مازيګرے ،، او نور.

**ـــــ ستوګه** :- (ـــــ س + ت + ر + ګ) (پ تر ، اس ، مع) د زهره روښانه ستورے. په فارسۍ کښې ورته ناهيد هم وائي (د تفصيل دپاره (وګورئ ـــــ زهره).

**ماښامے** :- (ما + ښا + مے) (اس ، ظر ، مذ ، ج ـــــ مي) د ماښام وخت . د ماښام اولنے يا اخري وخت. ښاپېرک.

**ماضي** :- (ما + ضي) (ع ، اس ، ج ـــــ ګانې) (۱) تېره زمانه ، تېر شوے وخت (۲) پخوا .(۳) قاعدو کښې هغه فصل چې د تېرې زمانې سره تعلق لري.

**ماطل** :- (ما + طل) (ع ، مذ) ملت ، هغه سړے چې قرض واپس کولو کښې اخوا دېخوا او انې بهانې کوي. لاتجي مار.

**ماغ** :- (ما+غ) (اسم ، مذ ، مو ، ع ، ف) (۱) د بطخې يا مرغابۍ او ايلۍ د نسل يو مارغۀ .(۲) د کوتترو يو قسم دے.

**ماغزۀ** :- (ما + غ + زۀ) (اس ، واحد ، جم) مازغۀ ، دماغ ، مغز.

**ماغژے** :- (ما + غ + ژے) (اس ، مذ ، ج ـــــ ژي) (۱) موږے (۲) غوجل ، اخور .(۳) ځناور چې ماغژي ستر شي غوښ ئې مه کسه . (متل) يا (۴) چې په موږي دې لوے شي غاښ ئې مه ګوره.

**ماغو** :- (ما + غو) دستانه ، جمع ماغوګان.

**ماغوت** :- (ما + غو + ت) (اس ، مذ) د يو قسم ټوکي نوم دے . د حلوا يا فېرنۍ يو قسم ، ماقوت ، ماقوتي.

**ماغوندې** :- (ما + غون + دې) (صفت) (۱) ماغوندې ، زما په شان ، زما په رنګ (۲) لکه : زما.

**مافيها** :- (ما + في + ها) هغه څۀ چې په دې کښې دي.

چې مې سازه کړې دونهه د ملنګۍ

مـــــا فيها د زمانې شول راته جَوْ (خوشحال)

**ـــــ قبل** :- (ـــــ ق + ب + ل) (ع تر) (۱) هغه چې مخکښې دي ، وو ، وي (۲) اولنے.

**ماکو** :- (ما + کو) (اسم ، مذ ، ج ، ن / ګان) (۱) د جولاد کډۍ يو اوزار (۲) يو قسم کښتۍ .(۳) هغه مچۍ يا ډمبره چې د ژمي په راتلو ئې لشه کار پرېږدي.

**ماکور** :- (ما + کو) (اس ، مذ ، ج ـــــ ان / ګان) (۱) د جولاد کډۍ يو اوزار . (۲) يو وړه شان کشتۍ چې د جولاګانو د ماکو په شکل وي.

**ماګۍ** :- (ما + ګ + ئ) (اس ، مو) هغه اوچ شوي اوړۀ چې د پېړرو جوړولو په تخته يا کپړه پورې نښتي وي.

**مـــآل** :- (م + آ + ل) (ع ، اس ، مـذ ، ج ـــــ ونـه) د راسـتنېدوځاے . د راګرځېدلو ځاے. انجام ، نتيجه ، خاتمه انتها يا اخري ځاے.

چې رنګ په خوئي خصلت د بابا نۀ وي

هغـــــه زويـــه د بـــل آل لري مآل (خوشحال)

که خوشحال خټک وار بيامونده په جهان کښې

خـــود بـــه وويني د دې چـــاري مـــآل (خوشحال)

**مال** :- (ما + ل) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه / اموال) (۱) دولت ، پېسې ټکې ، زر او نور .(۲) شتۀ (۳) سامان ، د تجارت سامان ، د سوداګرۍ سامان.

چې په مال پسې په خپله ډانګ را اخلي

کـــه ئې روغ واړه روغن شي مه ئې وينه (علي خان)

(۴) څاروي ، چارپايي او نور .(۵) تېره ، غوا يا مېښه يعني تېره شوې غوا ، مېښه .(۶) مالکېدل يعني په ښځه د نر ختل (۷) وخت لکه د سحر مال چې اصلاً مهال دے.

**ـــــ دولت** :- (ـــــ دو + لت) (اس ، مذ) نقديت ، روپۍ ، پيسې ټکې ، زر جواهرات وغېره.

**ـــــ راتلل** :- د سوداګرۍ څيزونه يا سامان بازار ته راتلل.

**ـــــ ګاډے** :- (ـــــ ګا + ډے) (پ تر ، اس مذ ، ج ـــــ ډي) د رېل هغه ګاډے چې په کښې تشې د مال د وړلو ډبې وي .(په مقابله کښې د سورلو د ګاډي).

**ـــــ ګزار** :- (ـــــ ګ + زا + ر) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان ، مو ـــــ ه) د کروندې د زمکې ماليه ورکوونکے.

**ـــــ ګـودام** :(ـــــ ګـو / ګُ + دا + م) (انګ پ ، تر ، اس ، مـذ ، ج ـــــ ونـه) هغـه ځاے چېرته چې د باهر نه راغلے تجارتي مال جمع کولے شي. عموماً د رېل ګاډي په سټېشنونو دې دپاره يو خاص ځاے جوړ شوے وي.

**ـــــ لګول** :- پيسې خرڅ کول ، روپۍ صرف کول.

**ـــــ مست** :- (ـــــ مس + ت) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغه سړے چې د خپل دولت په وجه مست او خوشحاله وي.

**ـــــ والا / واله** :- (ـــــ وا + ل) (پ تر ، اس ، مذ) د مال خاوند ، دولت واله ، دولتمند ، شته من ، د څاروو څښتن.

**ـــــ وړونکے** :- (ـــــ و + ړو + ن + کے) (پ تر و اس ، فا ، ج ـــــ کي) (۱) مال د يو ځاے نه بل ځاے ته وړولو واله .(۲) هغه ګاډے ، جهاز وغېره چې مال پرې د يو ځاے نه بل ځاے ته وړے شي .(۳) کُلي ، مزدور.

**ـــــ ومنال** :- (ـــــ (لو) + م + نا + ل) (ع ف تر ، اس ، مذ) دولت او جائيداد.

**ـــــ وهل** :- د چا نه په ټګۍ دوکه سره دولت تر لاسه کول.

**ـــــ يو اګۍ کول او له دېواله وېشتل** :- ډېرې بې دردۍ سره پيسې ټکې لګول. ډېره زياته فضول خرڅي کول.

**د تجارت ـــــ** :- (د + ت + جا + ر ت ـــــ).

**د سوداګرۍ ـــــ** :- (د + سو+دا+ ګي+رۍ ـــــ) (پ تر ، مذ) هغه څيزونه کوم چې د خرڅې دپاره وي.

**د مفتو ـــــ** :- (د + مف + تو ـــــ) (فپ ، تر و اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) هغه مال (دولت) چې بغېر د څۀ محنت او خوارۍ نه په لاس راغلے وي.

**د ـــــ ګاډي ډبه** :- (د ـــــ ډ + ب + بَ) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـــــ بې) د ګاډي هغه ډبه چې په کښې صرف مال وړے راوړے شي.

**د ـــــ منډۍ** :- (د ـــــ من + ډۍ) (پ تر ، اس ، مو) د څاروو منډۍ ، هغه منډۍ چېرته چې څاروي پېرلے پلورلے شي.

**لا وارثه ـــــ** :- (لا+ وا + ر + ث ـــــ) (فپ ، اس ، مذ) هغه مال څيزونه يا دولت چې هېڅوک وارث يا دعوې دار ئې نۀ وي. محاورتاً هغه مال

چې شوکمار يا حرام خوارۀ ئې په بې دردۍ خوري.

**مال** (۲) :- (ما + ل)(اس ، مذ ، ج ـــونه) څاروي ، غوا ميښې وغېره.

چې په مال پسې پخپله ډانګ راواخلي
که ئې دوغ واړه روغن شي مه ئې وينه (علي خان)

**ـــ ځرول** :- غوا مېښې وغېره څاروي ځرول.

**ـــ کېدل** :- د ماده څاروي حمل اخيستل. غوا مېښه ، ګډه يا بل داسې ماده ځناور باندې نر اوخيژي تېره ئې کړې نو دغې ته ,, مال کېدل ،، وائي. دغې نه چې اولګي نو بلاربه يا حامله شي.

**ـــ مواشي** :- (ـــ م + وا + شي).

**ـــ مويشي** :- (ـــ م + وي + شي)(پ تر ، اس ، ج) څاروي او نور کورني حيوانات

**ـــ ويلے کول** :- محاوره : خپل مالونه خرڅول. مال (۳) :- (ما + ل)(اس ، ظ) وخت ، هنګام ، مهال.

لکه : ماښام مال ، د ماښام په وخت مال (۴) :- (ما + ل) (صف) (ظفر) عادت ، اموخته ، مانوس.

**ـــ کول** :- بلدول ، عادتول ، اموخته کول. اوږدول ، مانوس کول.

**ـــ کېدل** :- بلد کېدل ، اموخته کېدل ، اوږدېدل.

**مال** :- (ما + ل) (انګ ، اس ، مذ) د چاؤڼۍ خاص پلن سړک ، چې عموماً ورته ,, ټهنډي سړک ،، وائي (اصلاً دا نوم په لندن کښې د يو مشهور سړک دے)

**مالا مال** :- (ما + لا + ما + ل)(هـ ، صف ، مذ ، مو ـــه) (۱) ډک ، لبريز ، شته مند (۲) پوره.

لکه باغ چې په ګلانو مالامال دے
زما جام دې په شرابو مالامال شي

قصيدې لرم غرا له هره بابه
په حکمت په نصيحت کښې مالامال (خوشحال)

**ـــ کول** :- (۱) ډکول ، پُر کول ، لبريزه کول. (۲) ډېر زيات دولت وغېره ورکول. شته من کول.

**ـــ کېدل** :- (۱) ډکېدل ، ببخي ډکېدل و لبريزه کېدل. (۲) ډېر زيات دولت وغېره موندل. شته من کېدل.

**مالت** :- (ما + لت)(اس ، مذ ، ج ـــونه)(۱) محلت ، ګاونډ ، کندے (۲) کور مالت.

**کور ـــ** :- (کو + ر ـــ)(پ تر ، اس ، ظر) کور او محلت ، چم ګاونډ. د ګاونډي او د محلتي د حقونو پالنه. کور کلے کول ، غم ښادي کول. تعلق ساتل.

**مالټه** :- (ما + ل + ټه)(اس ، مو ، ج ـــ ټې) د نارنج د خاندان مشهوره مېوه. مالټا د يورپ په بحيره روم کښې د يوې جزيرې نوم دے. رقبه ئې ۲۰۰۹۵ يعني شل زر او پينځۀ نوي مربع ميل.

**مالچر** :- (ما + ل + چر) (و ـــ مالځر) د مال د ځرولو ځائے ، چې مالځر هم ورته وائي.

**مال حال** :- (ما + ل + حا + ل)(اسم ، واحد ، مذکر) ساز او سامان ، مال دولت ، مال اسباب ، سامان وغېره. محاورتاً ټول جائيداد د څاروي وغېره.

**مال خانه** :- (ما + ل + خا + نه)(اسم ، واحد ، مونث) د مال ايښودلو ځائے ، ذخيره. د سرکاري وسلې ايښودلو ځائے.

**مالوه** :- (ما + ل + ر)(و ـــ د ,, ما ،، ترلاندې).

**مالش** :- (ما + لش) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــونه) مرېل يا مخښل ، تېل يا مرهم په يو انداز باندې داسې لګول چې پرې په پستو ، پستو مرېلو هوار کړے شي.

**ـــ کول** :- مرېل ، مښل ، تېل يا دوائي په بدن مرېل.

**مالشي** :- (ما + ل + شي)(فپ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) مالش کوونکے.

**مالک** :- (ما + لک)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــه)(۱) څښتن و تښتن ، خاوند (۲) مختار (۳) د خداے پاک يو صفتي نوم دے.

**ـــ حقيقي** :- (ـــ ح + قي + قي)(ع تر و اس ، مذ) اصلي او حقيقي څښتن ، خداے تعالى

**ـــ خودکاشت** :- (ـــ خ + د + کا + ش + ت)(عف تر ، اس ، مذ) د زمکې هغه مالک چې پټے پخپله کري.

**ـــ علي الاطلاق** :- (ـــ ع + لل + اط + لا + ق) (ع تر ، اس ، مذ) مطلق مالک ، پوره پوره مالک ، خداے پاک.

**ـــ کول** :- خاوند کول ، په ملکيت کښې ورکول. مالک ګرځول.

**ـــ کېدل** :- خاوند کېدل ، په خپل ملکيت کښې راوستل. مالک ګرځېدل.

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے)(عپ ، تر ، اس ، مذ) د مالک حېثيت ، مالکيت ، د مالک کېدلو حق لرنه.

**مالک** (۲) :- (ما + لک)(اس مع) امام مالک د فقهې په څلورو امامانو کښې يو امام.

**مالکانه** :- (ما + ل + کا + ن)(عف ، تر ، صف) د مالک هغه اواله ، د مالک په طور. د مالک په انداز.

**مالکوس** :- (ما + ل + کو + س)(هـ ، اس ، مذ) د يو راګ نوم دے.

**مالکونړې** :- (ما + ل + کو + ن + ړې)(و ـــ مارکونړې).

**مالکه** :- (ما + ل + ک) د ,, مالک ،، مؤنث.

**مالکيت** :- (ما + ل + کي + يت)(اس ، مذ) د مالک په حېث حق ، مالک کېدنه مالک والے.

**دولتي ـــ** :- (دو + ل + تي ـــ) د حکومت د ملکيت حق.

**شخصي ـــ** :- (شخ + صي ـــ)(ع ف ، تر ، اس ، مذ) انفرادي طور سره د يو يو کس د ملکيت حق.

**مالګبانۀ** :- (ما + ل + ګ + با + ن)د " مالګبه" جمع ده.

**مالګبه** :- (ما + ل + ګ + ب)(پ تر ، اس ، مذ) د مالګې سوداګر ، د مالګې کاروبار کوونکے.

**مالګروړے** :- (ما + ل + ګ + رو + ړے)(اس ، مذ ، ج ـــ بي) د مالګې لوښے ، هغه لوښے چې په کښې مالګه په اوبو کښې ګډه کړې پرته وي او په خمبيره کښې اچولے شي.

**مالګذاري** :- (ما + ل + ګ + زا + ري)(ف تر ، اس ، مو) د کروندې د زمکو (پټو) ماليه

**مالګنول** :- (ما + ل + ګ + ن + ول)(مص) مالګين کول. نمکين کول.

**مالګنے** :- (ما + ل + ګ + نے) او ګورئ مالګروړے.

**مالګنے** :- (ما + ل + ګ + نے) مالګنے ، د مالګې لوښے ، نمکدان.

**مالګوے** :- (ما + ل + ګو + يے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ بي) مالګيني اوبۀ ، اوبۀ چې په کښې مالګه ګډه کړې وي.

**مالګه** :- (ما + ل + ګ)(اس ، مو ، ج ـــ ګې)(۱) نمک يعني سوډيم کلورائيډ (Nacl) (۲) ښائست يا ښۀ والے.

**ـــ مرچکے دوړول** :- (و ـــ مالګه دوړول) محاورتاً بې ځايه يا طرفدارانه تبصره کول. يا مداخلت کول.

**مالګين** :- (ما + ل + ګين)(اسم ، صف ، مذ)(۱) هغه مرک / پخکړے چې مالګه په کښې ګډه وي. هغه څيز چې د مالګې خوند لري. (۲) ښائسته ،

بنکلې (۳) د هلکانو د يوې لوبې نوم دے.

**ـــــ بسکټ** :- (ـــ بس + کټ) (انگ ، تر ، اس ، ج) هغه بسکټ چې د خوړو په ځاے په کښې مالگه اچولے شوې وي.نمکين بسکټ.

**ـــــ واله** :- (ـــــ وا + ل) (پ تر ، اس ، مذ) (۱) هغه څيز چې په کښې مالگه گډه وي.مالگين ، نمکين (۲) د مالگې خرڅوونکے.

**مالگين** :- (ما + ل + گي + ن) (اس ، مذ) د هلکانو د يوې لوبې نوم دے.

**مالگينتوب** :- (ما + ل + گي + ن + تو + ب) (پ تر ، اس ، مذ) مالگين والے ، د مالگې گډون ، نمکيت ، نمکيني.

**مالگينه** :- (ما + ل + کي + نه) (اس ، مو) يو قسم سبزي ده چې خوند ئې تريو وي.تريوکۍ / تريوکے.

**مالگيني** :- (ما + ل + گي + ني) (پ تر ، اس ، مو) نمکيني ، مالگين والے.

**مالگينے** :- (ما + ل + گي + نے) (اس ، مذ) د باټينگنو د بوټي په شان يو بوټے دے.

**مالگينېدل** :- (ما + ل + گي + ني + دل) (مص) (۱) مالگين کېدل ، نمکين کېدل.د مالگې خوند په کښې پيدا کېدل.(۲) بنکلے کېدل ، نمک په کښې پيدا کېدل.

**مالم کور** :- (ما + لم + کو + ر) (اس ، مع) د خدي خېلو څانگه ده.خدي خېل (اسمعيل زي) اورکزي دي.

**مالنه** :- (ما + ل + نه) (هـ ، اس ، مو ، جـ ـ ړې) (۱) د ,, مالي ،، مؤنث دے.ماليارہ.

که راووځې د اغيارو له انگنه

په هغه زمان په وويني مالنه (ميا نعيم)

(۲) محاورتاً معشوقه.

د هغۀ په تندي سيورے د هما شو

چې له باغ سره ئې خپله شوه مالنه (يونس)

**مالوچ** :- (ما + لو + چ) (اس ، جم) هغه نرمه ماده چې د پونبې د بوټي د گل د غوځې نه راووځي.نهالۍ برستنې او بالښتونه وغېره ترې ډکولے شي او تار ترې رېشلے شي.

**مالوچول** :- (ما + لو + چ + و + ل) (مص) مالوچ جوړول.

**مالوف** :- (ما + لو + ف) (ع ، اس ، مف ، مذ ـــ ه) (۱) هغه چې ورسره الفت يا مينه کړے شوې وي.خوږ.اموخته شوے ، بلد شوے ، عادت شوے.

**مال و منال** :- (ما + ل + و + م + نا + ل) (اسم ، واحد ، مذکر) (۱) مال و دولت ، مال جائيداد مال اسباب ، (۲) مرتبه.

**ماله** :- (ما + ل) (پ تر) (۱) د ,, ماله ،، مخفف.د متکلم ضمير اضافي حالت کښې.(۲) د ,, ما ، ته ،، هُم ، هَم معنٰی دے.دلته حالت مفعول کښې دے.

**ماله** :- (ما + ل) (اس ، مو ، جـ ـــ لې) د زميندارۍ يا قلبې يو اوزار.هغه تخته شان څيز چې د غوايانو قلبې پسې د اړولې ياکرلې پټي هوارولو دپاره ترلے او راکښلے شي.

**ـــــ کول** :- اړولے شوے پټې ، د مالې په گرځولو هوارول.

**ـــ گرځول** :- (و ـــ ماله کول).

**ماله** :- (ما + ل) (اس ، مو ، جـ ـــ لې) (۱) د جولاگانو برمنځه يا برش (۲) د جولاگانو نو هغه برش شان چې هغوي پرې په خپل کار اوبۀ باشي.

**مالۍ** :- (ما + لی) (اس ، مع) د شنگي خېلو څانگه ده. (شنگي خېل ، بهلول زئ) محسود دي.(د ماليو څانگې دادي.بخي خېل او بيبلۍ).

**مالي** :- (ما + لي) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) (۱) باغوان ، چې د گلونو د کرکښت کار کوي.(۲) ماليار هم ورته وئيلے شي.(۳) مال واله ، لکه مالي کال.

**مالي** :- (ما + لي) (ف تر ، صف) ,, مال ،، سره تعلق لرونکے.د پيسو ټکو معاملاتو سره تړون لرونکے.

**ـــــ کال** :- (ـــ کا + ل) (پ تر ، اس ، مذ) هغه کال چې په کښې د يو کال د خرڅې او بچت وغېره حساب ختمېږي.دا کال ځينې وختې د عامو جنترو د کالونو نه جدا وي.

**ماليات** :- (ما + ل + يا + ت) (اس ، ج) د مال جمع ده.مال دولت ، پيسو ټکو سره تعلق لرونکې معاملې.

**وزير ـــ** :- (و + زي + ر ـــ) (عف ، تر ، اس مذ ، ج) دمالي معاملاتو وزير.

**ماليار** :- (ما + ل + يا + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) اوگورئ مالي.

**ماليت** :- (ما + لي + يت) (ع ، اس ، مذ ، ج ، ونه) (۱) قيمت ، بيعه ، د قيمت اندازه ارځښت.(۲) سرمايه ، پنگه.

**ماليخوليا** :- (ما + لي + خو + ل + يا) (ع ، اس ، مو) سودا ، سودائي توب ، لېونتوب ، د مغزو خلل.خام خيالي اصلاً ,, مېلنکوليا ،، دے.

**ماليده** :- (ما + لي + ده) (ف ، اس ، مو ، جـ ـــ دې) (۱) مليده.يو قسم خوراک دے.چوري.(۲) يو قسم پشمداره کپړه يا ټوکے کوم چې اومخنبلے شي نو نور پوست والے په کښې راشي.

**ماليزئ** :- (ما + لي + زئ) (اس مع) د مليزي احمدزيو څانگه ده.

**مالېکيول** :- (ما + ل + ک + يو + ل) (انگ ، اس ، مذ) (۱) د يوې مادې د وړې نه وړه ذره.چې کيمياوي لحاظ سره د خپل اصل خواص لري (۲) د دوؤيا زياتو ايټمونو مجموعه.

**ماليه** :- (ما + ل / لي + يه) (اس ، مو ، جـ ـــ يې) د کروندې د زمکې ټېکس چې محکمه مال ئې د زمکو د مالکانو نه اخلي.

**ماما** :- (ما + ما) (اس ، مذ ، جـ ـــ گان) (۱) د مور ورور.(۲) پردي سړي او يا مشرانو سړو دپاره دا ټکے راتلے شي.

**ـــــ جي** :- (ـــــ جي) (پ تر ، اس ، مذ) د هرې داسې رشتې د نوم سره د لاحقې په توگه راځي لکه : استاذ جي ، داداجي ، داجي ، بابا جي ، کاکاجي ، لالاجي او ماماجي.دغو رشتو يا نورو سره ددغه ټکي استعمال ددغه رشتې د خوږوالي نخښه هم ده او د عزت هم.

**ماما خېل** :- (ما + ما + خې + ل) (پ ، اسم ، تر) (۱) د مور د اړخه خپلوان (۲) د پښتنو د ځينې قبيلو نوم دے.

**ماماغواگۍ** :- (ما + ما + غ + وا + گی) يا : ماماغوږۍ (پ تر ، اس ، مو) يوه حشره ده.چې گرمو علاقو کښې د سپرلي په شروع کښې د پټو په پولو او يخو علاقو کښې گرمۍ کښې هم ليدے شي.دسپېۍ يا کونځکې په شان خول لري او په سر ئې دوه بنکرونه شان هم وي.

**ماما غوږ** :- (ما + ما + غ + وږ) (پ تر ، اس ، مذ) يو قسم بوټے دے چې کچه خوړلے شي.

**مامته** :- (ما + م + ته) (اس ، مو ، جـ ـــ تې) هغه (لړه شان) زمکه چې چارچاپېره ترې دېوال وي.د چار ديوالۍ په مېنځ کښې زمکه.باړۍ ، کنډر.

**مامک** :- (ما + مک) (اس ، مذ) د ,, ما ما ،، تصغير دے.ماماته د خطاب په وخت د مينې په طور استعمالېږي.

**مامکو** :- (ما + م + کو) (و ـــ مامک).

**مامنزے** :- (ما + م + ن + زے) د محمد زي وران شکل.د پښتنو يوه مشهوره قبيله.ډول په دواوه غرېدۀ.مامنزے ورته کورگډېدۀ.(متل)

**ماموت** :- (ما + مو + ت) (اس ، مع) د ,, محمود ،، بدل يا عوامي شکل.

لکه : ماموته بيا دې موته (متل)

**مامور** :- (ما + مو + ر) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) د عربۍ د ,, معمور ،، بدل شکل دے.ډک ، لبريز ، پوره (۲) عربۍ کښې په همدغه املا په کار لگولے شوے يا په يوه عهده مقرر کړے شوے.

**ماموره** :- (ما + مو + ر) (اس ، مو ، ج ـــــ رې) د "مامور" ، مؤنث دے ۔

**ماموريت** :- (ما + مو + ري + يت) (ع تر ، اس ، مذ ) ګمارنه ، ټاکلے کېدنه ، تقرر ، تعين ۔

**مامورين** :- (ما + مو + ري + ن) (اس ، مذ ، ج) د مامور جمع ده ۔

**ماموس** :- (ما + مو + س) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) خيرن پيرن ، ګنده ۔

**ماموسی** :- (ما + مو سی) (اس ، مو) د ناکو ناشپاتو يو قسم دے ۔ يوه مېوه ۔

**مامولکه** :- (ما + مو + ل + ک) (اس ، مو ، ج ـــــ کې) د يوې مرغۍ نوم دے ۔ چې لکۍ هر وخت خوځوي ۔

**مامولی** :- (ما + مو + لی) (اس ، مو) اوچه کړې خور مانۍ يا خوبانۍ ، وزيرو او داوړو کښې مندته هم ورته وئيلے شي ۔

**مامون** :- (ما / مَ + مو + ن) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) په امن کښې ، محفوظ ۔

ـــــ **کول** :- په امن کول ، محفوظ کول ۔ بې فکره کول ۔

**مامونکه** :- (ما + مو + ن + ک) (اس ، مو ، ج ـــــ نکې) (ظفر) (و ـــــ مامولکه) ۔

**مامونی** :- (ما + مو + نی) (اس ، مع) د پښتنو د يو مشهور روماني قيصې هېروئنه يا سوره ۔

**ماموئ** :- (ما مو + يئ) (صف) د منډتې زردالو يو قسم دے ۔

**مامی** :- (ما + مي) (و ـــــ مامي) ۔

**مامي** :- (ما + مي) (اس ، مو ، ج ـــــ ګانې) د ماما ښځه ۔

**ماميره** :- (ما + مي + ره) (اس ، مو ، ج ـــــ رې) يو غرئيز بوټے دے چې جرړه ئې دسترګو په دارو کښې استعمالېږي ۔ ځينې خلق سلاجيتو ته هم ماميره وائي ۔ خو سلاجيت بېل شے دے ۔

**مانته** :- (ما + ن + ت) (اس ، مو ، ج ـــــ تې) د جولاګانو ړمنځه ۔

**مانج** :- (ما + ن + ج) (هـ ، صف) وينځلے ، په اوبو صفا کړے ۔ لکه : مانج کړي لوښي ۔ (هـ ـــــ مانجه) ۔

**مانج کول** :- (ما + ن + ج + ک + ول) (فعل ، حمص) وينځل ، صفا کول ۔

**مانجر** :- (ما + ن + جر) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) ماجر ، د قبرستان نه ګرد چاپېره ديوال يا ديوالګے ۔

**مانجه** :- (ما + ن + ج) (هـ ، اس ، مو ، ج ـــــ جې) د ګوډۍ ، پتنګ يا باډيوې هغه تار چې اوړۀ کړې شيشه وريوړې لګولے شوې وي ۔ او تار کښې مضبوطوالے او تېرۀ والے پېدا شي ۔

**مانجي** :- (ما + ن + جي) (هـ ، اس ، مو ، ج ـــــ ان) مانګے ، کښتۍ چلوونکے ۔ (هـ ـــــ مانجهي) ۔

**مانجي** :- (ما + ن + جي) (اس ، مذ ، ج ـــــ ان) د جينۍ د کور د طرفه بللے شوي مېلمانۀ ۔ (د جانجي ضد) ۔

**مانځاله** :- (مان + ځا + له) ۔

**منځاله** :- (م + ن ـــــ) ځاله ، جاله لکه : باز منځالي نه باز او ټپوس منځالي ټپوس بچے پورته کېږي ۔

**مانځل** :- (ما + ن + (د) ز + ل) (مص) (۱) عزت او احترام کول ۔ عزت ورکول (۲) عطاکول ، ورکول ، اصلاً "نمانځل" ، دے ۔

**مانځي** :- (ما + ن + (د) زي) (صف) د نمونځ قابل ، پاک ، صفا (جامه يا ځاے)

**مانځے** :- (ما + ن + (د) زے) (اس ، مذ ، ج ـــــ ځي) د مېچنې محور ، منځے (اصلاً د "منځ ځاے" ، مخفف دے) ۔

**ماندره** :- (ما + ن + د + ره) (اس ، مو ، ج ـــــ رې) (۱) د تنبو يا خيمې پړے ۔ طناب (۲) د ختکې خربوزې ډکره يا بياره (۳) "ګيله" ، سر د لاځقې په توګه هم وئيلے شي ۔ لکه "ګيله ماندره" ، ۔

**ماندګي** :- (ما + ن + د + ګي) (ف ، اس ، مو) ستړې ، ستوماني ، پراته پاتې کېدل ۔ کمزورتيا ، مانده والے ، ډنګر والے ټپ والے ۔

**ماندورئ** :- (ما + ن + دو + رئ) (اس مع) د پېښور ضلعې يو کلي نوم دے ۔

مـــــاندورئ پُر ملې بېچاره دي
نۀ د خوانې د جواب دي نۀ د بنې (خوشحال)

**مانده** :- (ما + ن + ده) (ف ، اس ، صف) (۱) نرے ، ډنګر وټ (۲) کمزورے ، ناتوانه (۳) وروستو پاتې ، ستړے ۔

**مانده** :- (مان + ده) (اس ، مو ، ج ـــــ دې) د سېلاب د تېرېدلو لاړ ۔ اوچ خوړ چې په کښې د سېلاب اوبۀ بهېږي ۔ ماندونه ، مندونه ۔

**مانده** :- (مان + ده) (حرف) د "ګانده" ، تابع مهمل دے ۔ لکه : صبا مبا

ع زۀ په ګانده مانده نۀ يم نن ئې نمايه (خوشحال)

**ماندېګی** :- (مان + دې + ګی) (پ تر ، اس ، مو) ماينه ، ښځه ۔

**ماندينه** :- (ما ن + دي + نه) (اس ، مو ، ج ـــــ نې) ښځه ، (د خاوند يا څښتن په مقابله کښې) ۔

**مانډولين** :- (مان + ډو + لين) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) مانډولين ، مېنډولين ، د موسيقۍ يوه اله ۔

**مان ډه** :- (مان + ډه) لوښے خصوصاً خاورين لوښے ۔ په زړه پانګه کښې د ارزاني يو شعر د قلمي نسخې څخه رانقل شوے دے ۔ چې په کښې "مانډه" ، ليکلے شوے دے يعني :

د يوه کلال مانډے دے
که کشر دے که ککوړے ارزاني

اصلاً دا د هندي لفظ دے ۔ په هندي اردو وغيره کښې "بهانډه" ، (خاورين) لوښي ته وائي ۔ په پنجابي هندکو کښې دا په (پ + هـ) "پهانډه" ، بدل شوے دے ۔ ځکه "بهانډه" ، يا "بانډه" ، درست ښکاري ۔

**مانډه** :- (مان + ډه) (اس ، مذ ، ج ـــــ ډې) د "منډ" ، په بله لهجه تلفظ دے ۔ د قدم خاپ ، د قدم نقش ، پل ، د پل نخښه ۔

**مانډۀ** :- (مان + ډۀ) (فعل) د "منډل" ، مصدر څخه د ماضي فعل ۔ منډۀ ، منډلو ۔

**مان ډه** :- (مان + ډه) (اس ، مو ، ج ـــــ ډې) (۱) لويه ازغنه ځانګه ، چې د غوبل په وخت د غوبل غوئي پسې تړلے شي (۲) "منډ" ، هم وئيلے شي ۔ د پښې خاپ ۔ (۳) هندکو کښې خاورين لوښي ته وئيلے شي ۔

**مانع** :- (ما + نع) (ع ، اس ، فا ، مذ ، مو ـــــ ه) منع کوونکے ، اړيکه ، د لارې خنډ مشکل ۔

د باغ پخه مېوه چې بې مانعه بيا مومي ځوک
هلته مرد بويه چې نفس ببرته له طغيان وساتي (حافظ)

**مانعه** :- (ما + ن + ع) (صف ، مو) د "مانع" ، تانيث دے ۔

**مانګ** :- (ما + نګ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) منګ هم وئيلے شي ۔ تندي نه بره د سرو يو کالے دے او اړخونو د غوږونو دپاسه تړې يوه ، يوه وړه کټورۍ هم راځوړند وي ۔

چې د مانګ لړۍ دې جوړه په جاده شي
تر زينت ئې د فلک جاده ســاده شــي (هجري)

د منګ سره ځينې وخت يو تعويذ هم ځوړندولے شي ۔ دغه ته بيا مانګ تعويذ يا منګ تعويذ وائي ۔

**مانګور** :- (ما + ن + ګو + ر) (و ـــــ منګور) ۔

**مان موله** :- (مان + مو + له) (اس ، مو) يو ځنګلي بوټے ۔

**مانوس** :- (ما + نو + س) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـ ه) اشنا شوے ، بلد شوے

**مانه** :- (ما + نه) (پ تر ، مف) لـه مانـه ، زمانـه ، زما څخـه ، زما د طرفـه ـ د متکلم ضمیر ، مفعولي شکل ـ

**مانه** :- (ما + نه) (اس ، مو ، ج ــــ نې) ګله ، شکایت ، مانړه ـ ګیلـه ، د زړهٔ خفګان ، ازرولي ـ

**ــــ کول** :- ګیله کول ، شکایت کول ـ خفګان څرګندول ـ

هيڅ وفـــا ئي له رحمان سره ونه کړه

تر د رحمان به څه مانه کړي له افلاکه (رحمان بابا)

**ــــ منل** :- د چا ګیله منل ، د چا د شکایت اعتراف کول ـ خپله خطا منل ـ

**ماني** :- (ما + ني) (اس ، مع) یو مشهور رومي مصور (۲۱۶ـ۲۷۶ء) تېر شـوے دے ـ دهٔ د پېغمبـرۍ دعـوٰی هـم کـړې وه ـ ددهٔ د مصـورۍ مشهور کتاب ,, ارژنګ ،، دے ـ

**مانيټر** :- (ما + نی + ټر) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د کلاس مشر ، په مدرسو کښې په هر جماعت کښې یو هلک مشر جوړولے شي ـ هغه مانیټر بللے شي ـ

**مانګے** :- (ماڼ + ګے) (اس ، مذ ، ج ــ ګان / یان) کښتئ یا بېړۍ چلوونکے ـ ملاح ـ (د مانګي په چیلم کښې اوبهٔ نهٔ وي) ـ (متـل) مانړو ورتـه هم وئیلے شي

**مانړو** :- (ما + ړو) (هـ ، اس ، مذ ، ج ــــ ګان) انسان ، مهذب انسان ، متضاد ئې بدماړو دے ـ چې ځنګلي سړي ته وئیلے شي ـ

**ماڼو** :- (ما + ڼو) (اس ، مذ ، ج ــــ ګان) هغه ډېره موچۍ چې د ژمي په راتلو ئې لشه کار پرېږدي ـ ماکو هم اوګورئ ـ

**ماڼو** :- (ما + ڼو) (اس ، مذ) د یو بوټي نوم دے ـ چې خوشبویه وي او دانو ته ئې هم ماڼو وائي ـ پاڼې ئې د سترګو دخوږ دپاره ورلوګے کولے شي ـ (ع ـ حب الاسی) ـ ځینې خلق ئې پاڼې د خوشبویۍ دپاره په چایو کښې هم اچوي ـ پاڼې ئې د بیمارو علاج کښې هم پکار راځي ـ د یوې مېوې نوم هم دے ـ دماڼو نباتاتي انګریزي نوم ULMUS LAEVIGATA (المس لیوي ګیټا) ـ

**ماڼوګے** :- (ما + ڼو + ګے) (اس ، مذ ، ج ــــ ګي) د ,, ماڼو ،، تصغیر دے ـ

**ماڼي چغ** :- (ما + ڼي + چغ) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) چورلنده تپال ـ باڼي چغ هم ورته وائي ـ

**ماڼۍ** :- (ما + ڼۍ) (اس ، مو) محل ، حویلۍ ، بنګله ، لوے عمارت ـ

ددنیاګۍ فاني بازار دے

نادان ظالم په کښې ماڼۍ ابادوینه (ټپه)

ودانۍ ئې همه واړه ویرانۍ دي

راشه وګـــوره ماڼۍ د قیانوس (رحمان بابا)

**ماڼے** :- (ما + ڼے) (اس ، مذ ، مو ، ج ــــ ي) خفګان ، بې وجهې یا بې دلیله مرور ېدل ـ ګیلې شکوې ـ محاورتاً متیـز ېدل ـ

ستا په ډېر ماڼي به حال د خوشحال څهٔ شي

چې په لـــږ ماڼي ئې ډېر په اند ېښنو کړي (خوشحال)

هسې ګیلې ـ

**ماوا** :- (ما + وا) (هـ ، اس ، مذ) (ظفر) اصل ، جوهر ډېر زیات یشولي پې ، کهووا ـ (د هندۍ تورے دے) ـ

**ماوت** :- (ما + وت) (هـ ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) د ,, مهاوت ،، بدل شکل دے ـ د هاتي ساتونکے ـ فیلبان ـ

عــاشقان د ناصحانو پروا نهٔ کا

مست هاتي د ماوتانو پروا نهٔ کا (رحمان بابا)

**ماورا** :- (ما + و + را) (ع ، تر) څهٔ چې بهرتـه یا لرې وي ـ څهٔ چې (ددې نـه) په هغه خوا دي ـ علاوه ددې نه ـ

**مـاوراء النهـر** :- (مـا + و + را + ئـن + ن + هـر) (اس ، م) پـه مرکـزي ایشـیاء یـا روسي ترکستان کښې د جیحون نومې دریاب نه پورې غاړه علاقه ـ

**ماولے** :- (ما + و + لے) ـ

**ماولۍ** :- (ما + و + لۍ) (اس ، مذ ، مو) د ژرندې زېبانکه ، چې ژرنده پرې ګرځي ـ

**ماوه** :- (ما + وه) (اس ، مو ، ج ــــ دے) یو قسم ګیاه یا بوټے دے چې د کچـه ځرمنـې د پخولـو دپـاره پکـارولے شـي او د ایـرو نـه ئـې نسـوار هـم جوړېږي ـ

**ماويلي تاويلي** :- ما وئیلي تا وئیلي یا تا وئیلي ما وئیلي ـ د یو بل نه اورېدلې خبرې لمسون ، چغلي ـ

**ماه** :- (ما + ه) (ف ، اس) (۱) سپوږمۍ ، قمر (۲) میاشت ـ

**ــ پيکر** :- (ــــ پې + کر) (پ تر و صف ، مذ ، مو ـــ ه) د سـپوږمۍ پـه شان بدن لرونکے ـ ډېر ښکلے ، د معشوق صفت ـ

**ــــ جبين** :- (ــــ ج + بي + ن) (پ تـر ، صـف ، مـذ ، ج ـــ ه) د نـوم پـه توګـه استعمالېږي ـ د سپوږمۍ په شان تندے لرونکے مجازاً : ډېر ښکلے ـ د معشوق صفت ـ

**ــــ جلالي** :- (ــــ ج + لا + لي) (پ تر ، اس ، مذ) د شمسي کال د سپرلي یو میاشت ـ فروردین ـ

**ــــ رخ** :- (ــــ رخ) د ماه جبین یا مه جبین په شان د نوم په توګه ئې پښتانهٔ پکاروي ـ

**ــــ صيام** :- (ــــ ص + یا + م) (عف تر ، اس ، ظر) د روژو میاشت ، د رمضان میاشت ـ

**ــــ کنعان** :- (ــــ کن + عا + ن) (ف تر ، اس ، مذ) د کنعـان دملـک سپوږمۍ ، کنایه حضرت یوسف علیه السلام ـ

**ــــ لقاه** :- (ــــ ل + قا) (عف تر ، صف) د سپوږمۍ په شان مخ لرونکے ـ ډېر ښکلے و ډېر ښائسته ـ معشوقه ، محبوب ـ

**ــــ منير** :- (ــــ (هي) + مُ + ني + ر) (عف تر ، اس ، مذ) روښـانه سپوږمۍ ، ډېر ښکلے معشوق ـ

**ماهانه** :- (ما + ها + نَ) (ف تر ، اس ، ظر) ماهوار ، میاشت په میاشت ، هره میاشت ، د میاشتې په حساب ـ

**ماه تاب** :- (ما + ه + تا + ب) (ف ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) (۱) سپوږمۍ ، قمر (۲) یو قسم اتشبازي ، ماه تابي ، (۳) (هـ) د نجفې وزیر ـ

**ماه وسال** :- (ما + ه + (و) + سا + ل) (ف تر ، اس ، ظر) میاشت او کال ، مجازاً هر وخت

چې له بخته یاري نهٔ وي په دا څهٔ شي

که جهان د نېک خواي کا ماه و سال (خوشحال)

**ماهر** :- (ما + هر) (ع ، صف ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) مهارت لرونکے ـ په یو کار یا کسب ښهٔ پوهـ ـ

**ماهرانه** :- (ما + هـ + را + نه) (ف تر ، تف) د ماهر په شان ، د ماهر غونډې ـ

**ماهوار** :- (ما + هـ + وا + ر) (ف تر ، اس ، ظر) و ــــ ماهانه ـ

**ماهواري** :- (ما + هـ + وا + ري) (ف تر ، اس ، ظر) (۱) میاشتیزه (۲) د حیض راتلل چې جامې ، زړوکي یا میلمانهٔ هم ورته محاورتاً وئیلے شي ـ

**مـاهوت** :- (مـا + هـو + ت) (ف ، اس ، مـذ) (۱) پلـن سـوري والـه ټـوکے ، (۲) وړین یا سپنسین ټوکے ـ

**ماهي** :- (ما + هي) (ف ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) (۱) کب ، مهے یا ماهے (۲) د اسمان په دولسو برجونو (ستورو) کښې یو برج نوم ئې حوت ـ

(۳) د شمسي كال دولسمه مياشت چې د ۲۰ فروري نه / څخه تر ۲۱ مارچه پورې وي.

**ماهي ګير** :- (ما + هي + ګي + ر) (اسم و فاعل ، مذ ، ج ــان) مهيان يا كبان نيوونكے يا نيوونكي.

زمــــا زړۀ ئې په حلقه د زلفو يووړ
لكه لوے ماهے په شست د ماهي ګير (خوشحال)

**ــــ ګيري** :- (ــــ ګي + ري) (ف ، تر ، اس ، مو) د كبانو نيونه ، د مهيانو د نيولو پيشه.

**ماهے** :- (ما + هے) (اس ، مذ ، ج ــان) مهے ، كب ، د مهي په بله لهجه تلفظ دے

ستا وصال لكه درياب دے زۀ ماهے
په هجران دې هر زمان دے په ما هے (خوشحال)

**ماهيان** :- (ما + هـ + يا + ن) (اس ، مذ ، ج) كبان ، د مهے جمع ده.

**ماهيت** :- (ما + هي + يت) (اس ، مذ ، ج ــونه) اصليت يا اصل ماده ، جوهر ، حقيقت ، كېفيت ، اصل حال.

ماهيت ئې موندے نۀ شي
چــې څۀ څيز دے دا بشر (خوشحال)

**مائتهـ** :- (يا + ئ + تهـ) (انګ ، اس ، مذ) قصه ، داستان ، قصه ګوئي (سنسكرت : مهيا).

**مائچې** :- (ما + ئې + چې) (اس ، جم) مېنچې.

**مائـده** :- (مـا + ء + ده) (ع ، اس ، مـو ، ج ــــ دې) (۱) دسترخوان ، هغـه دسترخوان چې ډوډۍ وغېره پرې اېښودے شي .(۲) د قرآن پاک د يو سورة نوم.

**مائع** :- (ما + ئع) (ع ، صف ، مو ، ج ــات) بهېدونكے څيز ، لكه اوبۀ ، تېل وغېره

**مائل** :- (ما + ئل) (ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) (۱) متوجه ، راغب ، هڅه كوونكے (۲) يو طرف ته كوږ شوے.

له طوطيانو سره ګشت په مېوو نكړې
رذاله زاغـــــه مرداري ته مــــائله (حافظ)

(۳) مئين ، عاشق.

**مايي** :- (ما + يي) (هـ ، اس ، مو ، ج ــــ ګانې) د زنانه مدرسو ملازمه چې ځينې وخت وړې جينكۍ د كورونو نه مدرسې ته او د مدرسې نه كورونو ته بوځي رابوځي. چپراسنه يا چپړاسۍ.

**مائي تهالوجي** :- (ما + ئي + تا + لو + جي) (انګ ، اس ، مو) و ــــ مائتهـ.

**مائيك** :- (ما + ئك) (انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) هغه اله چې د غږ ريكارډ كولو يا لاؤډسپيكر ته وركولو د پاره پكار راوستے كېږي. پوره نوم ئې مائيكرو فون دے.

**مائيكروسكوپ** :- (ما+ئك + رو +سكو + پ) (انګ تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) خوردبين هغه اله چې پرې په نظر نۀ راتلونكي جراثيم ليدے شي.

**ماياګولي** :- (ما + يا + ګو + لي) (اس ، مو) د هلكانو د يوې لوبې نوم.

**ماينه** :- (ما + ئې + نه) (اس ، مو ، ج ــ نې) (۱) مانديـنه ، ښځه ، (د خاوند د څښتن په مقابله كښې) (۲) مائنده يا مېنده يعنې مور (۳) عامه ښځه (كاكړ وغېره).

**مايوس** :- (ما + يو + س) (ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) ناامېده ، نهيلے.

**مايوسي** :- (ما + يو + سي) (عف ، تر ، اس ، مو) نااميدي.

**مايه** :- (ما + ي) (اس ، مو) د چرګې په هګو باندې نورې اګۍ كښېښونه.

**مايه** :- (ما + يه) (اس ، مو) (۱) تومنه ، چې په پيو كښې د چكه كولو د پاره اچولے شي .(۲) تخم ، مني (۳) هغه اوبۀ چې پرې لوے لوے ګڼ وېښتۀ وې او لوے كوهان لرې .(۴) بت ، چې د وريځو يا ناشيشتې نه جوړولے او جامو كالو ته وركولے شي.

**مباح** :- (مُ + با + ح) (ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه / ات) روا ، جائز ، حلال ، د شريعت مطابق.

**ــــ ګرځول** :- جائز ګرځول ، يو كار د شريعت د حكم مطابق ګرځول ، د جائز كېدلو حكم كول.

**مباحات** :- (م + با + حا + ت) (ع ، اس ، ج) د مباح جمع ده. جائز كارونه ، روا كارونه ، هغه كارونه چې د شريعت له رويه ئې كول درست وي.

**مباحت** :- (مُ + با + حت) (ع ، اس ، مذ) مباح كېدنه يا ,,بودنه،، ، جواز ، جائز كېدنه ، حلال كېدنه.

**مباحث** :- (م + با + حث) (ع ، اس ، ج) د مبحث جمع ده. بحثونه.

**مباحثه** :- (مُ + با + ح + ث) (ع ، اس ، مو ، ج ــــــ ثې) خبرې اترې ، بحث ، تكرار ، سوال جواب.

**مبادا** :- (م + با + دا) (ف تر ، تف) هسې نه چې ، خدائے مه كړه ، خدا نخواسته.

**مبادرت** :- (م + با + دَ / دِ + رت) (ع ، اس ، مذ) (۱) تعدي ، جلتي ، سرعت ، تلوار (۲) سبقت (۳) زړۀ ورتوب ، جرات.

**مبادرت** :- (م + با + دَ + رت) (فعل ، مذ) بېړه يا تونـدي ، وړاندې والے ، تېزي چې ځينې ځاے كښې د زړه ورتيا نخښه وي.

**ــــــ كول** :- (۱) په كار كښې وړاندې كېدل ، سبقت كول ، لاس خوځول (محاورتاً) تلوار كول ، بېړه كول. جرات كول ، زړۀ ورتوب كول.

**مبادله** :- (مُ + با + د + ل) (ع ، اس ، مو ، ج ــــ لې) بدل ، ادلې بدلې ، ادل بدل ، بدلونه عوض ، معاوضه.

**مبادلې** :- (م + با + د + لې) (۱) د ,,مبادله،، جمع ده .(۲) د ,,مبادله، بدل شكل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**مبادي** :- (م + با + دي) (ع ، اس ، ج) د ,,مبدأ،، جمع ده. ابتدائي ، د شورو (د شروع) بنيادي (خبرې اصول وغېره).

**مباديات** :- (م + با + دي + يا + ت) (ع ، اس ، ج) د ,,مبادي،، جمع ده . ابتدائي خبرې ، ابتدائي اصول ، بنيادي اصول.

**مبارز** :- (م + با + رز) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) (۱) په جنګ كښې د مقابلې بلنه وركوونكے ، د جنګ مېدان كښې وړاندې وتونكے او دښمن ته د مقابلې غږ كوونكے (۲) توروزن ، بهادر ، مېړنے ، سپاهي ، جنګيالے ، جګړن.

**مبارزه** :- (م + با + ر + ز) (ع ، اس ، مو ، ج ــــ زې) (۱) د جنګ په مېدان كښې د يو مېړني مېدان ته وتل او دښمن ته د مقابلې د پاره د وتلو غږ كول . د جنګ په مېدان كښې د مقابلې چېلنج وركونه (۲) جنګ ، مقابله.

**ــــ كول** :- په جنګ كښې د مقابلې د پاره چېلنج وركول. مقابله كول. جنګ كول.

**سياسي ــــ** :- (س + يا + سي ــــ) (عف ، تر ، اس ، مو ، ج ــــ زې) سياسي جنګ ، سياسي كشمكش.

**طبقاتي ــــ** :- (ط + ب + قا + تي ــــ) (عف ، اس ، مو ، ج ــــ زې) د مختلفو طبقو په خپله كښې جنګ او كشمكش.

**مبارك** :- (مُ + با + ر + ك) (ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) بركت والـه ، ښۀ بخت والـه ، نېك پال والـه ، نېك ، سعيد (د سپېرۀ په مقابله كښې).

كــــــوم راعي بـــه مبارك لكه موسیٰ وي
چې شعيب غوندې مرادبخش ئې مستاجر شي (حافظ)

**ــــ شه** :- (ــــ ش) (جمله) دا څيز يا كار دې ستا د پاره د نېك بختۍ

سبب وګرځي ـ دعائيه جمله ده چې د کوم نوي کار کولو ، د نوي جامې د اغوستلو وغيره په موقع وئيلے شي ـ د خوشخبرۍ اورولو په موقع هم وئيلے شي ـ يعني زېرے مې دربانديٰ خوشخبري مې درله راؤړې ده ، او نور ـ

**مبارک** :- (م + با + رک) (اسم صفت ، مذ) برکت واله و برکت ناک ، بختور ،

چې د ښکلو د جمال برکت ډېر دے

مخ ئې ځکه مبـارک نيسي په خال (خوشحال)

**مبارکبادي** :- (م + با + ر + ک + با + دي) د ,, مبارکبادي ،، يعني ,, مبارکي ورکول ،، جمع ده ـ

**مبارکبادي** :- (م + با + ر + ک + با + دي) (ف تر ، مو) مبارکے ,,مبارکباد ،، وئيل ، ,,مبارک شه ،، وئيل ـ د برکت دعا ورکول ـ

**مبارکه** :- (م + با + ر + ک) (۱) د ,, مبارک ،، تانيث دے ـ د ,, مبارک شه ،، په ځاے استعمالېږي ـ (۲) د زنانه ؤ نوم اېښودے شي ـ

**مبارکي** :- (م + با + ر + کي) يا :- (اُ + م + با + ر + کي) عپ تر ، مو) مبارک وئنه ، مبارکبادي ، دنېکۍ يا د خېر دعا ـ د يوې بيمارۍ نوم هم دے ـ

**مباشر** :- (م + با + شر) (اس ، فا ، مذ ، مو ــــ ه) لاس اچوؤنکے ـ

يو ظــالم وي بل مدد ورسره کاندي

يو ساعي وي بالفساد بل مباشر شي (حافظ)

**مباشـرت** :- (م + با + ش + رت) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــــ ونه) (۱) په کار لګېدنه ، پخپله کار کونه (۲) يو بل سره ښځۀ ملاوېدنه (۳) کوروالے ، جماع کول ـ

**مبال** :- (م + با + ل) ټټۍ ، ډېران ، چارچوبۍ يا چارچوبي ـ

**مبالات** :- (م + با + لا + ت) (ع ، اس ، ج) سوچونه يا فکر ، غور و خوض کول ـ

**مبالغ** :- (م + با + لغ) (ع ، اس ، ج) د ,, مبلغ ،، يعني روپۍ جمع ده ـ (و ـــ مبلغ) ـ

**مبالغه** :- (م + با + لَ / ل + غ) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ غې) (۱) په يو کار کښې ډېر زيات کوښښ کول ـ د علم بديع په اصطلاح کښې کومه مدحه يا غندنه تر داسې حده پورې رسول ـ چې هورې رسېدل محال يا ډېره بعيده خبره وي ـ ددې درې غټ غټ قسمونه دي ـ (۲) په خبره کښې د حقيقت او اصل واقعې د ځانه خبرې ګډول او په ډېر زيات شکل کښې وړاندې کول ـ (۳) د اصل په مقابله کښې د حد نه زيات صفت يا غندنه کول ـ

ـــــ **آميز** :- (ـــ آ + مې + ز) (ف تر ، صف مذ ، مو ــــ ه) د مبالغې سره ګډ ، دا خبر يا خبره چې په کښې د حقيقت نه زيات څۀ وئيلے شوي وي ـ

ـــــ **کول** :- يو خبره د اصل نه زياته او خونړۀ کړې ويل د چا چې ذکر و صفت يا غندنه د حقيقت نه زيات څۀ وئيل ـ

**مباني** :- (م + با + ني) (ع ، اس ، ج) (۱) د مبني جمع ده ـ بنيادونه ـ (۲) تعمير شوي ځايونه ، کوروه ، عمارتونه ـ

**باني** ـــــ :- (با + نې ـــــ) (عپ تر ، صف) د ,,باني ،، تاکيد لفظ دے ـ يعني اصل او بنيادي بنا کوؤنکے ـ

**مباهات** :- (م + با + ها + ت) (ع ، اس ، مذ) (۱) فخر ، وياړ ، تفاخر (۲) شان شوکت ، عزت ـ

**مباهله** :- (م + با + هـ + ل) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ لې) دوه اختلاف کوونکي کسان چې سره د خپل ټول بال بچ يا خاندان را اووځي او دا دعا اوغواړي چې څوک په ناحقه وي ـ هغه دې برباد شي ـ

**مبتداء** :- (مُب + ت + دا) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ ګانې / وې) (۱) ســــــر ، اول سر ، ابتداء ، شروع ، اغاز ، پيل (۲) (ګرېمر) په اسميه جمله کښې اولنے جزاء ، چې دويم جزء ئې ,, خبر ،، نومېږي ـ

**مبتدي** :- (مُب + ت + دي) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) (۱) شروع کوونکے (۲) نوے کار کوونکے ، ، نوآموز ، نوے زده کونکے ـ ناتجربه کار ـ

**مبتسم** :- (مُ + ب + ت + سم) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) تبسم کوونکے ، مسېدونکے ، موسکے کېدونکے ـ

**مبتکر** :- (مُب + ت + کر) (ع ، اس ، فا ، ج ـــ ان / ين) (۱) کوم نوے څيز راوړونکے ـ (۲) څۀ نوے کار ښودونکے ـ

**مبتلا** :- (مُب + ت + لا) (ع ، اس ، مذ / مو) نيولے شوے ، ګرفتار ، نښتے ، راګېر ، مشغول ، مصروف ، لګيا ، عاشق ، مئين ، شېدا ـ

مبتلا خاطر مې مرې د يــار د لاسه

بياله مينې هم د يار په سر سوګند کا (خوشحال)

**مبتلا** :- (جمله) (دے) اخته دے ـ مشغول دے ، عاشق دے ـ مئين دے ـ

څـــو زۀ بنـــــده زنده يم د هغو زلفو بنده يم

چې تل ئې سل سل زړونه په هر تار دي مبتلا (خوشحال)

**مبحث** :- (مو + ب + حث) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / مباحث) (۱) د بحث يا د تکرار عنوان (۲) بحث ، مباحثه (۳) د بحث کولو ځاے ـ

**مبداء** :- (مب + دا) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ مبادي) (۱) سرچينه ، منبع ، سر ـ (۲) د شروع ځاے ـ

**مبـدع** :- (مب + دَع) (ع ، اس ، مو) (۱) د ظاهرېدلو ځاے ، د څرګندېدلو ځاے يا د پېدا کېدلو ځاے ځائېګے (۲) اصل ، جړه ، بنياد ، د (د) په زېر سره ـ

**مبدِع** :- (مُبْ + دِع) (۱) په اول ځل پېدا کوونکے ، خالق (۲) ايجاد کوونکے (۳) د الله پاک صفتي نوم دے ـ

**مبدل** :- (مُ + ب + د + ل) (ع) بدل شوے ، اړولے شوے ، متغير ـ

**مبذول** :- (مَب + ذو + ل) (۱) را يا ورګرځول (۲) ورکول يا بخښل (۳) خرڅ کړے ، لګولے ، صرف کړے ـ

ـــــ **کول** :- خرڅ کول ، مصرف کښې راوستل ، راګرځول ، منعطف کول ، توجه سره راځي ـ

**مبرا** :- (مُ + ب + را) (ع ، صف) (۱) پاک ، صفا ، بري ، ازاد ـ

الف اسم د مولى دے

لــه نقصانه مبرا دے (حافظ)

(۲) بې عېبه (۳) وېزاره ، ځانله ،

ـــــ **کول** :- بري کول ، پا کول ، صفا کول ـ بې ګناه ګرځول ـ

**مبرم** :- (مُ + ب + رم) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) (۱) پــــه ځــــاے ټينګ ، نۀ اوړېدونکے (۲) ضروري ، مضبوط ، محکم ، کلک لکه : احتياج مبرم ـ

د هر چا په بـــــاب چې شوي ، هغه کېږي

په هېڅ رنګ به خپل مبرم حکم نور نۀ کړي (خوشحال)

**مبرور** :- (م + ب + رو + ر) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) پاک ، مقدس ، د ګناهونو نه پاک کړے ـ

**مبسوط** :- (مَبْ + سو + ط) (ع ، صف ، مذ ، ج ــــ ه) غوړېدلے ، خوور وور ، وېر ، فراخه ، ارت ببرت ـ

**مبصر** :- (مُ + بص + صر) (ع ، صف ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ين) (۱) تبصره کوونکے ، نظر اچوونکے (۲) کره کوټه معلوموونکے ـ (۳) صلاح مشوره ورکوونکے ، مشير ـ

**مبعوث** :- (مب + عو + ث) (ع ، اس ، مف ، ج ـــ ان) لېږلے شوے ، استولے شوے محاورتاً پېغمبر [۴] ـ

**ـــــ کول** :- (۱) لېږلې ، استول ، خصوصاً د پېغمبر په حېثيت استول ـ (۲) پس له مرګه پاسول ، ژوندے کول.

**ـــــ کېدل** :- (۱) لېږلې کېدل ، استولې کېدل ، خصوصاً د پېغمبر په طور يو قوم ته د هدايت دپاره د خدا ے د طرفه لېږلې کېدل.(۲) (د مرګ نه پس د قبر نه) راپاسېدل راپورته کېدل.

**مبلغ** :- (م / مُ + بْ + لغ) (ع ، اس) د روپو د شمېر ښودلو په موقع وئيلے شي ـ رقم ، پيسې ، کل ، ټول ،کره ، سره.

**مبلغ** :- (مُ + ب + لغ) (ع ، اس ، صف، فا، ج ـ ان / ين) رسوونکے ، تبليغ کوونکے ، (خصوصاً د دين د کار تبليغ او خوروونکے ـ

**مبنــي** :- (مـب + نـي) (ع ، اس ، مـف) بنـا ايښـودے شـوے ـ د بنيـاد کښېښودلو ځاے.په کوم څيز چې بنياد کښېښودلے شوے وي.

**مبهم** :- (مُبْ + هم) (ع ، صف ، مذ ، موــــه) هغه خبره يا نور څۀ چې صفا او واضحه نۀ وي.غېر واضح.

**مبهوت** :- (مب + هو + ت) (ع ، صف ، مذ ، موــه) هيبت وهلے ، حېران دريان، حق حېران.هيبت اخستے ـ

**مبهي** :- (م + ب + هي) (ع ، صف) شهواني قوت زياتوونکے ، شهوت لـه تحريک ورکوونکے (دارو خوراک وغېره) باه زياتونکې دوا ـ

**مبيع** :- (م + بي + ع) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مـوــه) پـه بيعـه اخستے شوے ـ خرڅ شوے.

**متابعت** :- (م + تـا + ب + عـت) (ع ، اس ، مـذ) پېروي کـول ، چاپسې تلنه ، فرمان ورنه ، اطاعت ، تابعداري.

**ـــــ کول** :- پېروي کول ، چاپسې تلل ، اطاعت کول ، تابعداري کول.

رحمان څکه د رېبار متابعت کا

چې زهرو له رهنمايه محبت کا (رحمان بابا)

**متاثر** :- (م + ت + ا + ث + ر) (ع ، اس ، صف ، مذ ، موــه) اثر قبلوؤنکے ، د اثر لاندې.

**متـاخر** :- (م + ت + اخ + خـر) (ع ، صـف / اس ، مـذ ، ج ـــ يـن) وروسـتو راتلونکے ، شاته راتلونکے اخر ته پاتې کېدونکے ، اخري.

**متـاخرين** :- (م + ت + آخ + (خ) + ري + ن) (ع ، اس ، مـذ ، ج) اخـر تـه پـاتې شوني ، د تېرې زماني خلق. د حال د زمانې خلق، (د متقدمين ضد).

**متـادب** :- (م + ت + ا د + دب) (ع ، اس ، صـف ، مـذ ، ج ــه) ادب نيـوونکے ، ادب واله ، شائسته مهذبه ، د ښۀ ؤ اخلاقو خاوند ـ

**متـاذي** :- (مُ + ت + اذ + ذي) (ع ، اس ، صـف) تکليـف مونـدونکے ، اذيـت موندونکے ـ

**متار** :-(م + تا + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ان)کوتک ، دوه ګزه ، غټ لرګے ـ

**متارکه** :- (مُ + تا + رَ / رِ + ک) (ع ، اس ، مو ، ج ــــ کے) د دواړو غـاړو نـه د يو څيز ترک کول ، پرېښودل ، عارضي صلح ، تيره.

**متارکې** :- (مُ + تا + ر + کې) د ,, متارکه ،، جمع د ,, متارکه ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**د ـــ قرار داد** :- (د ـــ ق + را + ر +دا +د)د عارضي صلحې قرار داد ـ

**متازه** :- (مُ / مو + تا + ز) (صف ، مو) د ,, محتاج ،، بدل شکل دے ـ حاجتمند ، ضرورتمند ، محتاج.

**متـازي** :- (مُ / مـو + تـا + زي) (اس ، مـو) د ,, محتـاجى ،، بـدل شکل دے ـ حاجتمندي ، ضرورتمندي.

**متاسـف** :- (مُ + ت +ا+سْ +س+فْ) (ع ، اس ،صـف ، مـذ ، مـوــه)افسـوس کوؤنکے ، په کوم يار يا پېښه د خپل زړۀ خفګان څرګندؤنکے پښېمانه.

**متاسفانه** :- (م + ت + ا + سْ + س + فا + ن) (عف تر ، تف) افسوس سره.

**متـاع** :- (م + تـا + ع) (ع ، اس ، مـو ، ج ــــ ګـانې) مـال اسـباب ، د ژونـد ضروريات د سوداګرۍ مال.

**متاعب** :- (م + تا + عب) (ع ، اسم) د عتاب جمع ده.تکاليف ، مصيبتونه ـ

**متاعي** :- (مُ + تا + عي) (ع ، اسم صف) هغه ښځه چې ورسره متاع کړے شوې وي.متاع مشهوره اصطلاح ده.چې عارضي نکاح ته وئيلے شي.او په خاص حالاتو کښې کېدے شي.

**متاکد** :- (م + ت + ا + کد) (ع ، اس ، صف ، مذ ، موــه) تاکيـد شـوے ، هغه کار چې تاکيد او پخوالے ئې شوے وي.

**متالم** :- (م + ت + ا + لْ + لِ + م) (ع ، اس ، صف ، مذ ، موــه)دردمند ، غمژن ، مغموم.

**متامل** :- (م + ت + ام + مـل) (ع ، اس ، صف ، مذ ، موــه) تامل کوؤنکے ، سوچ کوونکے.غور کوونکے ، فکر کوونکے ، تېزي يا تونديې نۀ کوونکے ـ

**متامن** :- (م + تَ + ا + مْ + مِ + نْ) (ع ، اس ، مذ ، موــــه) محفوظ ، پـه امـن کښې ، صحيح سلامت ، هغه چې څوک خپل همراز او محرم اوګرځوي ـ يا چې په چا اعتبار کوي.

**متانت** :- (م + تـا + نت) (ع ،اس ،مذ) (۱) سنجيدګي ، پوخوالے ، کلکوالے محکمي (۲) دروند خوئي (۳) د خيالاتو درستي.

**متـانس** :- (مُ + تـا + نْ + نِ + س) (ع ، اس ، مـذ ، مـوــــه) انس لـرونکے ، عادت کېدونکے ، بلد شوے ، انشا شوے / شوي.

**متبادل** :- (م + ت + با + د + ل) (ع ، اس ، صف ، مذ ، موــه) بل يا دويم.

**متبـاين** :- (م + ت + بـا + يـن) (ع ، اس / صـف ، مـذ ، مـوــه)(۱) جـدا ،مختلف (۲) دوه مخالف چې سره نۀ جوړېږي ـ (۳) (رياضي) هغه عدد چې اجزائے ضربي ئې نۀ جوړېږي لکه : **۵** او **۱۲**.

**متبحر** :- (م + ت + بَحْ + حرْ) (صف ، مذ ، موــــه) درياب غوندې ، د بحر غوندې ، لکه متبحر عالم ، لوے عالم ،فاضل علامه.

**متبـرک** :- (م + ت + ب + رْ + رِک) (ع ،اس ، صف ، مذ ، مو ـ ه) برکت والا ، برکتي ، مقدس ، پاک.

**متبسم** :- (م + ت + بس + سم) (ع ، صف ، مذ ، موــــه)(۱) تبسم کوونکے ، موسېدونکے ـ(۲) مجازاً سپړدے ، سپړدلے شوے (غوټۍ)(۳) مجازاً : پرقېدونکې بجلي.

**متبصر** :- (م + ت + بص + صر) (ع ، اس ،مذ ،موــــه)(۱) هغه چې غور سره ګوري يا غور کوي (۲) هوښيار ، دانا ـ

**متنبّي** :- (م + ت + ب + ن + نا) (ع ، اس ، مـذ ، ج ــــ ګـان) پـه زوے نيـولے څوک پردے يا خپل هلک چې ورته زوے وئيلے شوے وي.

**متبـوع** :- (م + ت + بـو + ع) (ع ، صف ، مـذ ، مـوــه) هغـه څوک چې تـابع داري يا پېروي ئې کېږي.او اصل متبوع الله دے.

**متجاوز** :- (م + ت + جا + وز) (عه ،اس ،صف، مذ ، موــه) تجاوز کوونکے ، د حد نه اوښونکے زياتے کوونکے ـ

**متجسس** :- (مُ + ت + جس + سس) (ع ،صف ، مذ) لټوونکے ـ

**متجلـي** :- (م + ت +ج +ل +لـي) (ع ،اس ،صـف) ځلـق ورکـوونکے ، روښـانه کوونکے ، روښانه ، څرګند ، ظاهر ـ

**متحارب** :-(م + ت + حا + رب) (ع ، اس ، صف ، مذ ، موــه) په جنګ کښې اخته ـ

**متحد** :- (مُ + تْ + تَ + حدْ) (ع ، صف ، مذ ، موــه) يـو ځـاے ، پـه ا تفاق ، سره يو شريک.

**متحـرک** :- (مُ + ت + + ح + رْ + رِ + ک) (ع ،صف ، مـذ ، مـوــه) پـه حرکت کښې ، حرکت واله ، خوځېدونکے ، روان.

**متحمل** :- (مُ + ت + ح + مْ + مِ + ل) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) تحمل يا صبر واله ، زغم واله ، برداشت واله.

**متحول** :- (م + ت + ح + وُل) (ع ، اس ، مت) بدل شوے ، تبديل شوے لکه : متحول حالت.

**متحير** :- (م + ت + ح + يْ + يِ + ر) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) حيران ، هک دق ، هک پک.

**متخاصم** :- (م + ت + خا + صم) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) سره په جنګ ، سره په جګړه کښې اخته .

**متخالط** :- (م + ت + خا + لط) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) خلط ملط ، ګډ وډ ، سره ګډ وډ ، يو ځاے.

**متخصص** :- (م + + خَص + صِصْ) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) خاص مهارت لرونکے ، سپېشلسټ.

**متخلص** :- (م + ت + خ + لص) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) تخلص کوونکے ، لکه : اشرف خان المتخلص به هجري (۲) بچ کړے شوے ، خلاص کړے شوے.

**متخلل** :- (م + ت + خ + لْ + لِلْ) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) خلل ورکوونکے ، خلل اچوونکے وران اچونکے. (۲) خلال استعمالوونکے .

**متخيل** :- (م + ت + خي + يلْ) (ع ، اس ، مف) په خيال کښې راغلے ، په فکر کښې راغلے ، خيالي.

**متدارک** :- (م + ت + دا + رک) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) درک لګوونکے ، يو څيز ته رسېدونکے ، پوهېدونکے يا پوهه ، په مطلب رسېدونکے. (۲) (عروض) د يو بحر نوم ، چې وزن ئې اتۀ ځله ,, فاعلن ،، دے.

**متداول** :- (م + ت + دا + ول) (ع ، اس ، مف) (۱) لاس په لاس ګرځېدلے ، وار په وار اخستے شوے. (۲) مروج ، په رواج کښې راغلے. مشهور او ډېر په استعمال کښې راغلے څيز. (۳) معمولي ، رسمي ، عام.

**متدبر** :- (م + ت + دب + بر) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) تدبير کوونکے ، صاحب تدبير ، مدبر ، هغه چې په کومه خبره يا يو کار نه اګاهو بنۀ سوچ کوي. پوهه.

**متدرج** :- (م + ت + د + رِج) (ع، صف ، مذ ، مو ـــ ه) درجې لرونکې ، هغه څيز چې درجه په درجه وي. پوړۍ په پوړۍ.

**متدين** :- (م + ت + د + ين) (ع ، صف، مذ، مو ـــ ه) دين لرونکے ، ديندار ، ايماندار ،ديانت دار ، کره لکه : متدين قاضي.

**متذبذب** :- (م + ت + ذب + ذب) (ع ، مذ ، صف) وسواس کونکے ، دوه زړې.

**متذکره** :- (مُ + ت + ذک + ک + ره) (ع ، مذ ، صفت) بيان کړے شوے ، ياد کړے شوے.

**متر** :- (م + تر) (اس ، جم) پې او ماسته چې سره ګډه شوے وي ، خرېړے ، تازه قروت چې لاوچ شوے نۀ وي.

**متر** :- (م + تر) (اسم ، مذ ، مو / ج) هندي کښې دوست اشنا او يار ته وئيلے شي. په تومنه ورغلي يا بې تومنې ورغلي پې.

**متر** :- (مت + تر) (اسم ، صف ، مذ ، مو) لوبو کښې د ډلې مشر ، ميتېر ، د کچ د پيمانې نوم.

**مُتر** :- (مُ + تر) (اسم ، مذ ، مو) متيازي ، موتيازي ، مُتر په موتر هم وئيلے شي

**مترادف** :- ( مُ + ت + را + دف) هغه معنٰى الفاظ ، داسې الفاظ چې معنٰى ئې يوه وي.

**متراوڼ** :- (مت + را + وڼ) (اسم ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) موتيازڼ ، هغه څوک (واړۀ) ، چې کټ کښې په اودو موتيازې کوي.

**مترجم** :- (م + ت + رج + جم) (ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) ترجمه کوونکے ، ژباړه کولو واله ، ژباړن.

**متردد** :- (م + ت + رد + دد) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) تردد کوونکے ، وروستو مخکښې کېدونکے ، په دوۀ کښې حيران. فکر مند ، پرېشان.

**متروکے** :- (مُت + ر + کے) (اس ، مو ، ج ـــ کې) (۱) وړوکے څټک ، مترکے هم وئيلے شي. (۲) ماتوړ يا مېټے يعنې هغه غټ يا درونډ څټک چې پرې کاڼي ماتولے شي.

**مترنم** :- (م + ت + رن + نم) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) په ترنم سره ، په خوښ اوازۍ سره.

**مترڼ** :- (مُت + رڼ) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) خيرن ، ګنده ، ناپاک.

**متروک** :- (مت + روک) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) پرېښودے شوے ، ترک کړے شوے.

**متروکه** :- (مت + رو + کَ) (اس ، مو ، ج ـــ کې) چابک ، تازيانه ، کروړه.

بولاق د وينځې په خوئې خصلت دي
از ورلـــه بويـــه لويـــه متـــروکـــه (خوشحال)

**متروکه** :- (مت + رو + کَ) (ع ، اس ، مو ـــ کې) د ,, متروک ، تانيث دے . هغه څيز چې ترک کړے شوے وي . پرېښودے شوے څيز . په ترکه ( وراثت ) کښې پرېښودے شوے.

**متره** :- (مَتْ + ر) (اس ، مو ، ج ـــ رې) عوزه ګل. (ف : ژند ).

**متره** :- (مت + ر) (اس ، مو ، ج ـــ رې) حس ، قوت ، طاقت ، همت.

**متره** :- (مت + ر) (اس ، مو ، ج ـــ رې) لوټه ، کلوخ نايابه ، ناوياته ، نايابه.

تاچې هسې بې نيازي د ځان توښه کړه
په عـــاشق دې د خندا زمکه متره کړه (ع، ر، ب)

**مترئ** :- (مت + رۍ) (اس ، مو) وړوکۍ بنۍ يا ګوډے ، شناز.

**متړ** :- (م + تړ) (مذ ، صف) بې وقوف ، کم عقل.

**متزلزل** :- (م + ت + زَل + زِل) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) رچېدونکے ، لړزېدونکے ، په ځاے يا خبره نۀ ټينګېدونکے.

**متزين** :- (م + ت + زي + ي (ن) (ع ، اس ، مف) ښائسته کړے شوے ، زينت ورکړے شوے ، اراسته کړے.

**متشابه** :- (م + ت + شا + به) (ع ، صف ، مو ، مذ) يو شان والے ، په يو څيز يا کس د بل شک کېدل.

**متشدد** :- (م + ت + ش + دْ + د + دْ) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) شدت راوستونکے ، سختي کوونکے په خپلو اصولو کلک او ټينګ اودرېدونکے.

**متشرع** :- (م + ت + شر + رع) (ع ، صف ،مذ ،مو ـــ ه) د شرعې پابندي کوونکے . د شرعې پابند ،د شرعې د احکامو په سختۍ سره پابندي کوونکے.

**متصادم** :- (م + ت + صا + دِم) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) مخامخ کېدونکے / کې ټکره خوړونکے ،ډغره وهونکے يو بل سره په مقابله کښې مخ په مخ راوتونکے

**متصرف** :- (م + ت + صر + ف) (ع ، صف ، مذ، مو ـــ ه) تصرف کوونکے، په قبضه کښې راوستونکے ، قابض ، تر لاسه کوونکے.

**متصف** :- (م + تص + صف) (ع ، اس ، مف) صفت لرونکے ، موصوف.

**متصل** :- (مُتْ + تَ + صِل) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) جوخت ، سره لګېدلے . خوا په خوا ، نزدې پرله پسې ، متواتر ، هغه حديث چې د راويانو په سلسله کښې ئې راوي پاتې شوے نۀ وي.

**متصور** :- (م + ت + صو + ور) (ع ،اس ، مف) په تصور کښې راغلے ، په خيال

کښې راغلې، په تصورکښې راوستې شوې.

**متضاد** :- (مُ + ت + ضا + د) (ع ،صف، مذ، مو ـــه) تضاد لرونکې، برعکس ، برخلاف اُلټه ،د یوبل ضد یا عکس.

**متعارض** :- (مُ + ت + عـا + ر + ض) (ع ، صـف ، مـذ ، مـو ـــه) تعـارض کوونکې،د یو بل برخلاف ،د یو بل برعکس ، متضاد ، برعکس.

**متعاقب** :- (م + ت + عا + ق + ب) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــه) تعاقب کوونکې ، چاپسې کېدونکې،چا پسې ځغلېدونکې ، وروستو راتلونکې.

**متعاهد** :- (م + ت + عا + هـ + د) (ع ، صف ، مذ ، ج ـــان / ین) سره معاهده کوونکې ، لکه : متعاهد قومونه.

**متعجب** :- (م + ت + عج + جب) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــه) عُجب یا تعجب کوونکې ، حېرانېدونکې ، حېران ، په تعجب کښې.

**متعدد** :- (م + ت + ع + دد) (ع ، اس ، عدد ،ګڼ ، شمېر کښې ډېر ،بسیار.

**متعـدي** :-(م + ت + عـد + دي) (ع ، صـف)د حـد نـه / څخـه اوړېـدونکې ، بدمعاش ، بدچلن ، ګنه ګار، هغه مرض چې د یو کس نه / څخه بل کس ته لګي (ګرېمر) هغه فعل چې د فاعل نه علاوه یو (یا زیات) مفعول هم غواړي.

**متعذر** :-(م + ت + عذ + ذر) (ع ، صف ، مذ ،مو ـــه) عذر یا اعتذاز کوونکې ، عذر وړاندې کوونکې.

**متعـرض** :- (م + ت + عـر + رض) (ع ، صـف ، مـذ ، مـو ـــه) لاره کښې خنډ کېدونکې ، مخه بندوونکې.

**متعرضانه** :- (م + ت + عـا + ر + ضا + نه) (عف ،تر ،تف) د متعـرض په انداز کښې ، د مخه بندولو په توګه.

**متعرف** :- (م + ت + عر + رف) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــان / ین) اعتـراف کوونکې ، منونکې،اقبال کوونکې ، هغه چې پېژندګلو پېدا کوي.

**متعزز**:- (م + ت + عز + زز) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــه) عزت موندونکې ، عزت واله ، د عزت خاوند.

**متعصب** :- (م + ت + عص ، صب) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــه) تعصب کوونکې ، د قوم یا د مذهب وغېره پره کوونکې.

**متعصبانه** :- (م + ت + عـص + ص + بـا + نه) (عـف ، تر ، تف)د تعصب پـه انداز کښې.

**متعفن** :- (م + ت + عف + فن) (ع ،صف ، مذ ، مو ـــه) بدبوینـه، عفویت لرونکې ، سخا شوې.

**متعقد** :- (م + ت + عق + قد) (ع ، صف، مذ ،مو ـه) غوټې غوټې ،غوټې دار.

**متعلـق** :- (م + ت + ل + لـق) (ع ، صـف ، مـذ ، مـو ـــه)تعلـق لـرونکې ، تـړون لرونکې

**متعلل** :- (م + ت + عل + لـل) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــه) علت لټوونکې،بانه لټوونکې،بهانې ګر، انې بانې کوونکې.

**متعلم** :- (م + ت + عل + لم) (ع ،اس ، صف ، مذ ، ج ـــان/ ین) طالب علم ، علم حاصلوونکې ، تعلیم حاصلوونکې.

**متعه** :- (م + ت + ع) (ع ، اس ، مو ، ج ـــعې) د لنډې مودې وادهٔ.د مقرره مودې پورې د ښځې خاوند په حېث ژوند تېرول. په ځینو فرقو کښې داسې نکاح جائز او په ځینوکښې اوس ناروا ګڼلې شي.

**متعهد** :- (م + ت + عهـ + هد) (ع ، صف،مذ،مو ـــه) عهـد کـوونکې ، لـوظ قـول کـوونکې یـو عهـد (زمـانې ، وخـت) کښـې ژونـد کـوونکې ، همعصر.

**متعین** :- (م + ت + عي + ین) (ع ، اس ، مف) تعین شوې ، مقرر شوې ، په کوم کار وغېره لګولې شوې.

**متعین** :- (م + ت + عي + ین) (ع ،صف، مذ، مو ـــه) تعـین کـوونکې ، تقرر کوونکې ، مقرروونکې.

**متغایر** :- (م + ت + غا + یر) (ع ، اس ، تف ، مـذ ، مـو ـــه) غېر ، جدا ، بېل ، په بل رنګ ، په بل شان ، مختلف.

**متغزل** :- (م+ت+غز+ زل) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــه) غزل ویونکې ، غزل ګو.

**متغیر** :- (م + ت + غي + یر) (ع ، اس ، تف) هغه چې تغیر ئې موندلې وي. بدل شوې ، تغیر شوې.

**متغیـر** :- (م + ت + غـي یـر) (ع ، صف ، مـذ ، مـو ـــه) تغیـر مونـدونکې ، بدلېدونکې ، هغه چې مستقل نهٔ وي.غېر مستقل بې ثباته.

**متفاوت** :-(م + ت + فا + وت) (ع ، اس ، مف)لرې کړې شوې ، ډېر فرق لرونکې.

**متفاوت** :- (م + ت + فا + وت) (ع ، صف،مذ،مو ـــه) تفـاوت لـرونکې ، فرق لرونکې، په فرق ، توپیر لرونکې ، د یو بل نه / څخه لرې.

**متفرق** :- (م + ت + فر + رق) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــه) فرقې فرقې ، ډلې ډلې ، جدا جدا ، ځانله ځانله.

**متفرقـات** :- (م + ت + فـر + رِ + قـا + ت) د ,, متفـرق ،، جمـع ده . جـدا جـدا څیزونه ، بېل بېل قسم.یا په خپله کښې تړون نهٔ لرونکې څیزونه.

**متفق** :- (م + ت + فق) (ع ، صف،مذ ،مو ـه) اتفاق لرونکې ، اتفـاق کوونکې ، رضامند ، موافق ، هم خیاله.

**متفکر** :- (م + ت + فک + کر) (ع ،صف، مذ، مو ـه) فکر کوونکې ، فکرمند ، غمژن ، خفه.

**متفنن** :- (م + ت + فن + نن) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــه) د ډېرو فنونو عـالم ، د فن فرېب ماهر.

**متفني** :- (م + ت + فن + ني) (ع ، صف ، مذ) د فن فرېب نه کار اخستونکې ، فرېبي ، درغل ، مکرژن.

**متقابل** :- (م + ت + قا + بـل) (ع ، صف ، مـذ ، مـو ـــه) مخامخ کېدونکې ، مقابله کوونکې مخې ته راتلونکې ، حریف.

**متقاضي** :- (م + ت + قا + ضي) (ع ، صف) تقاضا کوونکې، غوښتنه کوونکې ، غوښتونکې ، طلب کوونکې.

**متقاطع** :- (م + ت + قا + طع) (ع ،صف ، مذ ،مو ـه) سره یوبـل قطع کوونکې ، یو بل پرېکوونکې. لکه : متقاطع خطونه د یو بل نه جدا.

**متقبل** :- (م + ت + قب + بـل) (ع،صف، مذ، مـو ـــه) قبلوونکې ، منونکې ، ښکلوونکې.

**متقدس** :- (م + ت + قد + دس) (ع،صف،مذ، مو ـــه) پاک ، پاکې لرونکې.

**متقـدم** :- (م + ت + قـد + دم) (ع ، صف ،مـذ ،مو ـــه) وړانـدې کېـدونکې، وړاندې لاړ ښودونکې،اصل ،غوره ،وړاندینې، زوړ،قدیم ، سردار،افسر.

**متقـدمین** :- (م + ت + قـد + د + مـین) د ,, متقدم ،، جمع ده .پخوا تېـر شـوي خلق ، پخواني خلق ، (د متاخرین ضد).

**متقـي** :- (م + ت + تَ + قـي) (ع ، اس ، فـا ، ج ـــــان)اتقاء کـوونکې ، پرهېـز کوونکې ، پرهېزګاره ، زاهد ،عابد . (د شرعې نه خلاف کارونو تـه / څخـه ځان بچ کوونکې).

**متکا** :- (م + تک + کا) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ ګانې) د تکیـه لګولو ځـا ې ، د ډډې لګولو ځـا ې یا څیز ، لـو ې غټ او غونډ بالښت ، مُتکه هم وئیلې شي.

**متکادس** :- (م + ت + کا + دس) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــه) یـو پـه بـل ، لاندې باندې ابېښودې شوې ، قط په قط.

**متکامل** :-(م + ت + کا + م + ل) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــه) کمالي ، کمال ته رسېدونکې.

**متکبر** :- (م + ت + کب + بر) (ع ، صف، مذ، مو ـــ ه) تکبر کوونکے ، غرور کوونکے ، لويې کوونکے ، د خدائے پاک يو صفاتي نوم دے ـ

**متکبرانه** :- (م + ت + کب + ب + رانه) (عف ، تر ، تف) د کبر په انداز کښې ، د لويۍ په ډول ، غرور سره ـ

**متکلف** :- (م + ت + کل + لف) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) تکليف کوونکے ، کوښښ کوونکے ـ

**متکلم** :- (م + ت + کل + لم) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) کلام کوونکے ، خبره کوونکے ، گويان ـ (گرېمر) هغه صيغه چې په جمله کښې د کلام کوونکي سره تعلق لري ـ لکه : ,,زۀ ،، او ,,زمونږ ،، د متکلم ضميرونه دي ـ د علم کلام پوهان ـ

**متکلمين** :- (م + ت + کل + ل + مين) د متکلم جمع ده ـ کلام کوؤنکي ـ د علم کلام ماهرين ـ هغه عالمان چې مذهبي امور د عقل په بنا ثابتوي ـ

**متکي** :- (م + تُ + تَ + کي) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) تکيه کوونکے ، ابره کوونکے ، په بنا ، په بنياد ـ

**متل** :- (م + تل) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه کوټلې خبره چې په عربۍ او نورو ژبو کښې ورته ضرب المثل وئيلے شي ـ د ټپې په صورت کښې هم وي ـ

**متلازم** :- (م + ت + لا + زم) (ع،صف ،مذ ،مو ـــ ه) ضروري يا لازم کېدونکے ـ هغه څيز چې د بل کوم څيز سره ئې موجودگي ضروري وي ـ لکه : لازم سره ملزوم ـ

**متلاش** :- (مت + لاش) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د رواش نومې بوټي د تخم وړے ـ پنبۍ / پونبه ، رواښ ـ

**متلاشي** :- (م + ت + لا + شي) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) تلاش کوونکے ، لټوونکے ، جستجو کوونکے ـ

**متلاطم** :- (مُ + ت + لا + طم) (ع ، صف ، مذ ، مو) په موج کښې ، موجزن ، په چپو ، په غورځنگ ـ

**متلبس** :- (م + ت + لب + بس) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) په لباس پټ ، اغوستونکے / کې / کي ـ

**متلذذ** :- (م + ت + لذ + ذذ) (ع ،صف ،مذ ، مو ـــ ه) لذت لرونکے ، خونده ور ، خوندناک لذيذ ، لذت ور کوونکے ـ خوند اخستونکے ، لذت موندونکے ـ لطف موندونکے ، لطف اخستونکے ـ

**متلون** :- (م + ت + ل + و + و + ن) (ع،صف ، مذ ،مو ـــ ه) مختلفو رنگونو واله ، رنگ په رنگ کېدونکے ـ رنگونه بدلوؤنکے ، ساعت په ساعت بدلېدونکے ، استقلال نۀ لرونکے ـ

**متلي** :- (م + ت + لي) (اس ، صف) هغه کس چې ليک يا خبرو کښې متلونه ډېر وراندې کوي ـ

**متلي** :- (م + تل + لي) (ع ، اس ، فا) تلاوت کوونکے ، لوستونکے ـ

هر ايت چې راته پاس له عرشه

لا په عرش به ئې علي وو متلي (خوشحال)

**متماثل** :- (م + ت + ما + ثل) (ع ،صف،مذ ، مو ـــ ه) په شان ، په رنگ ـ

**متمادي** :- (م + ت + ما + دي) (ع،صف ،مذ ، مو ـــ ه) اوږد ، دراز ، اوږدوالے لرونکے

**متمائز** :- (م + ت + ما + يز) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) يو تر بله فرق لرلو واله ، په فرق سره بل شان ، غوره ، خاص ـ

**متمايل** :- (م + ت + ما + يل) (ع ، صف،مذ،مو ـــ ه) مايله کېدونکے ، خواهش لرونکے ،مېلان لرونکے ـ کږېدونکے ، تاوېدونکے ـ

**متمتع** :- (م + ت + مت + تع) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) فائده اخستونکے ، استفاده کوونکے ، مستفيد ـ

**متمدن** :- (م + ت + مد + دن) (ع ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) تمدن واله ، تمدن لرونکے ، مهذبه ـ

**متمکن** :- (م + ت + مک + کن) (ع ،صف ،مذ ، مو ـــ) مکان نيوونکے ، ځائے نيوونکے ، ناست ، قابض طاقتور ، د اختيار خاوند ـ

**متمم** :- (م + تم + مم) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) تماموونکے ، پوره کوونکے ، ختموونکے ـ

**متمني** :- (م + ت + من + ني) (ع ، اس فا) تمنا لرونکے ، خواهش لرونکے ، ارزو لرونکے ، ارزومند ، خواهشمند ـ

**متموج** :- (م + ت + مو + وج) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) موجونه وهونکے ، چپې وهونکے ، غورځنگ کوونکے ـ

**متمول** :- (م + ت + مو + ول) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) دولتمند ، شته مند ، مالدار ـ

**متن** :- (م + تن) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ممتون) د اصل موضوع بيان ، د کتاب اصل عبارت ، د کتاب کړې يا لاړې وغېره د مېنځ برخه ـ

**متنازع** :- (م + ت + نا + زع) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه څۀ چې پرې شر وي يا په کښې د چا سره خپلو کښې مخالفت وي ـ

**متناسب** :- (م + ت + نا + سب) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) تناسب لرونکي ـ د شمېر په مناسبت ، لکه متناسب نمائندگي ـ سره جوړ خوړونکي (څيزونه) ـ

**متناظره** :- (عپ تر ،اس ، مو ، ج) سره په يو سيد کښې چې په دواړو يا زياتو يو شان نظر پرېوځي ـ يو خط بره طرف ته او د بل خط بره طرف دواړه زاويې ـ چې دا په خپله کښې برابرې وي ـ

**متناقض** :- (م + ت + نا + قض) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) سره ماتوونکي ، د يو بل نفي کوونکي ـ د يو بل برعکس ، د يو بل مخالف ـ

**متناهي** :- (م + ت + نا + هي) (ع ،اس،فا) انتهاته رسېدونکے ، اخري سر ته رسېدونکے ، اخري حد ته رسېدلے ـ ختمېدونکے ، سر لرونکے ـ

**متنبه** :- (م + ت + نب + به) (ع ،اس،مف) خبردار کړے شوے ـ

**متنفر** :- (م + ت + نف + فر) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) نفرت کوونکے ، کرکجن ، کرکه کوونکے ، ويزاره ـ

**متنفس** :- (م + ت + ن + فَ + ف + س) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ساه لرونکے ، ساه اخستونکے ، ژوندے / ي ـ

**متنکر** :- (م + ت + نک + کر) (ع ،صف ، مذ ، مو ـــ ه) انکار کوونکے ، ناجانه

**متنگ** :- (م + تن + گ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) کمند ، پړے ـ

**متنوع** :- (م + ت + نو + وع) قسماقسم ، رنگ په رنگ ـ

**متني** :- (م + ت + ني) (اس ، مع) د علي خېلو څانگه ده ـ د اورکزو همسايه دي ـ

**متواتر** :- (م + ت + وا + تر) (ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) پرله پسې ، يو په بل پسې ، مسلسل ـ هغه حديث چې د راويانو سلسله ئې په مېنځ کښې نۀ ماتېږي ـ

**متوارث** :- (م + ت + وا + رث) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ميراث خوارۀ ، سره ميراث اوړونکي ـ

**متوازن** :- (م + ت + وا + زن) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) په توله،سره برابر ، په تول کښې سره يو هومره ـ

**متوازني** :- (م + ت + وا + زني) (ع ، صف) داسې حالت چې د دوؤ (يا زياتو) څيزونو په مېنځ کښې فاصله په هر ځائے کښې يو شان وي ـ سره خوا په خوا ـ

ـــــ **الاضلاع** :- (ـــ يل + اض + لا + ع) (ع ،تراس،مو،ج ـ گانې) د جيومېټرۍ

هغـه څلور ګـوټيځ شـکل چې مخـامخ مخـامخ بازوګـان يـا خطونـه يـا څانګونه ئې سره متوازي وي۔

**متواصل** :- (م + ت + وا + صل) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) يو بل سره ملاؤ ، سره يو ځاے ، سره لګېدلي۔

**متواضع** :- (م + ت + وا + ضع) (ع ،صف،مذ ، مو ــــ ه) تواضع دار ،خاطردار ۔

**متوجه** :- (م+ت +وج + جِه) (ع، صف) توجه کوونکے / کې / کي، پام کوونکے / کې / کي۔مخ راګرځوونکے / کې / کي۔

**متورم** :- (م + ت + ور + رم) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) پړسېدلے / لې / لي ۔ډډ بډ

**متوسط** :- (م + ت + وس + سط) (ع،صف،مذ ، مو ــــ ه)درميانه،منځومانه۔

**متوسل** :- (م + ت + وس + سل) (ع،صف،مذ ،مو ـــ ه)وسيله دار ، وسيلې واله۔

**متوصل** :- (م + ت + وص + صل) (ع ، اس ، مف،تف) سره جخت ، ملاؤ ، يو ځاے۔

**متوطن** :- (م + ت + وط + طن) (ع،صف،مذ ،مو ـــــ ه) استوګن ،اوسېدونکے ، باشنده ، مېشتهٔ۔

**متوفٰی** :- (م + ت + و + ف +فا) (ع ، صف) وفات ، مړهٔ۔

هم قطران ئې اغوستن که دلے راشي

د جهـان ژوندي بـه کل متوفٰی وي (حافظ)

**متوفي** :- (م + ت + وف + في) (اس ،مف) مړ ، مړه يا مړهٔ۔

**متوقع** :- (م + ت + وق + قع) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) طمع دار يا اميدوار ، خواهشمند ، منتظر۔

**متوقع** :- (م + ت + وق + قع) (ع ، اس ، مف) هغه چې امکان ئې وي ۔هغـه چې ترې طمعه وي۔

**متوقف** :- (م + ت + وق + قف) (ع ،صف ، مذ ،مو ـــ ه) وقفـه کـوونکے ، توقف کوونکے ، ولاړ ، ايسار۔

**متوکل** :- (م + ت + وک + کل) (ع ،صف ، مذ ، مو ــــ ه) توکـل کـوونکے ، سستي نهٔ کوونکے/کې / کي۔

غم د رزق مه کړه مطلق رازق باري دے

کلـک اميد لره پــــه خداے متوکله (حافظ)

**متولـد** :- (م + ت + ول + لـد) (ع ، صف ، مـذ ، ج ـــــ ان/ يـن) پيـدا شـوے ، زېږېدلے ، زوکړے۔

**متولي** :- (م + ت + ول + لي) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان) ولـي جوړېـدونکے ، انتظام کوونکے منتظم ، کالخوائے۔

**متون** :- (م + تو + ن) د ,,متن ،، جمع ده۔ (و ـــــ متن)۔

**متوهم** :- (م + ت + وه + هم) (ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) وهم کوونکے ، وهمي ، وسواسي۔

**مته** :- (م + تَ) (اس ، مو ، ج ـــــ تې) قسط راغونډول ، د بيپاري د خپلو ساميانو قسط وصولونه ، اګرئ کول ، برمه (د ترکاڼ يا لوهار)۔

**مته** :- (م + ت) (اس ، مذ) سور ،بد ځناور ، خنزير ، سوډر۔

که مته غواړي تبرهٔ لري ږک داړه

څهٔ مته غونډي ګذار وته داتهٔ کا (خوشحال)

**متهجد** :- (م + ت + هج + جد) (ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) تهجد کوونکے ، تهجد ګذار۔

**متهم** :- (مت + ت + هم) (اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه څوک چې تهمت پرې لګولے شوے وي۔چې تور پرې لګېدلے وي۔ بد نام يا تور دار۔

**متهم** :- (مت + ت + هم) (ع ، صف،مذ ،مو ـــ ه) تهمت لګوونکے، تور پورې کوونکے ، بدناموونکے۔

**متي** :- (م + تي) (اس ، جم) مذي ، هغه تيتګې ولاړو په شان رڼې سلېښداړې اوبهٔ چې د نارينـه د تشـو متيـازو د ځاےنه د شهوت په وخت را اوځي۔ پېښوبې (جدران)۔

**متے** :- (م + تے) (صف ، مذ ، ج ــــ تي) چست ،چالاک ، سپک دستے۔

**متيازې** :- (موت + يا + زې) (صف ، مذ ، مو ــــ ه) کټ کښې په اودو متيـازې کوونکے/کې /کي۔

**متيـازې** :- (م / مـوت + يـا + زي) (اس ، جـم) بـول ، محاورتـاً منـي ، نطفـه ، محاورتاً پيکه ، بې خونده څيز۔

**ــــ بلېدل** :- محاورتاً ډېر زيات خوش بختـه بودلـه بختور او کامرانه بودل۔ لکه : د چا تېل نهٔ بلېږي د فلاني ، موتيازې بلېږي۔

**ــــ خلاصېدل** :- بې قابو متيازې بهېدل۔ چا نه ډېر سخت وېرېدل۔

**ــــ سوځېدل** :- د متيـازو په انداز کښې د متيـازو کولـو په وخت د سوزش تکليف کېدل يوه بيماري ده۔

**ـــــ کول** :- وړوکے اودس مـاتول ۔پيشـاب کـول ۔ محاورتـاً د څهٔ څيز نـه کرکه کول۔نهٔ ئې خوښول ، نهٔ ئې اخستل۔,,په ،، ,,پرې ،، يا ,, پـه کښـې ،، متيازې کول دغه کلمې په مناسب ځاے ورسره راځي۔

**ـــــ کول د چا په خوړه ګوته** :- پخوا به خو معمول شان زخم پيدا شهٔ نو زر بـه ئې پرې متيـازې وکړې ۔په دې بـه زخـم ښـهٔ کېـدو ۔ (پـه کلـو کښـې د ماشومانو د سنت په وخت هم د هلکانو د متيـازو نه کار اخستے شي) دا محاوره داسې ده۔د چا په خوږ ګوته متيازې نهٔ کول۔

**په ـــــ هم سوځېدل** :- ډېر نازک بدن بودل۔

د باچا لور ئې په متيازو دې هم سوځي۔ (متل)

**په پر توګ کښې ـــــ کول** :- محاورتاً : ډېر زيـات وېرېـدل۔د وېرې نـه متيـازې ئې په پرتوګ کښې بهېدل۔

**متېره** :- (م + تې +رَ) (اس،مو) ديوې سبزې يا تر کارۍ نوم دے۔

**متېزڅک** :- (م + تې + ز + څک) (پ تر ، صف ، ج ـــــ ان) هغـه مريض چې د موتيازو څاڅکي ترې څاځي۔د سلسلة البول مريض (مؤنث) متېزڅکه۔

**متيقق** :- (م + ت + يق + قق) (ع ، صف ، مذ ، مـو ـــ ه) هغه چې پرې بـاور کړے شوے وي۔يقيني۔باوري ، اعتباري ۔

**متين** :- (م + تي + ن) (ع ، صف،مذ ،مو ـــ ه) کلک ، پوخ ، سنجيده۔

طالب د حق متين دے

په طلب ئې خوشه چين دے (حافظ)

**ـــــ کول** :- مضبوطول ، کلکول۔

په ښهٔ صورت سره په ښهٔ نګهت سره

ګـل د بـلبلـې مـينـه مـتـينـه کا (خوشحال)

**مـټ** :- (مـټ) (ه،اس،مـذ ،ج ـــ ونـه) (۱)چـاتې ، لوےخـاورين خـم ، غـټ منګے (۲) هغه مټه خاوره چې د سېلاب يا هسې اوبو بهېدلو نه وروستو پاتې او اوچه شي۔

**مټ** :- (مټ) (اس ، صف) نرمه او وچه خاوره ۔ هغه خاوره چې ختـه ئې تيـنګـه او سلېښـناکه وي ۔مټه ، مټينه ۔ د سېلاب د تېرېدلو نه پس چې کومـه خاوره په ځکه وچه شي۔

**مـټ** :- (مـټ) د څنګلې نـه تـر د ولـې پـورې لاس لاس ، طاقت ، زور ۔(محاورتاً ) اړانه ، امداد ګر ، ملګرے ۔په دغو معنو کښې ئې جمع ,,مټې ،، ده ۔خو مټې هم د طاقت يا زور په معنو کښې راځي ۔يعني د طـاقتونو يـا زورونـو پـه معنـو کښـې نـه ۔پـه لغـوي معنـو کښـې ئـې د جمعـې د اسـتعمال پـه وخـت جمـع ''مټونـه '' ده کـوم چـې د مغيـرو الفاظو سره دغلته هم د جمعې په حېث ''مټو'' راځي لکه ''مټې مې

خوږېږي'' یا ''د متیو نه تنګ یم'' او نور.

**ــــ سپکول ، په چا** :- ډېر زیات وهل.

**ــــ ښودل / ښئیل** :- د خپل مټ زور چا ته ښکاره کول. خپل زور ورڅرګندول. (محاورتاً) ډېر زیات وهل.

**ــــ کتل ، په چا** :- چا سره خپل زور معلومول.

**ــــ کول** :- همت کول ، کوښښ کول. پوره زوره لګول. امداد کول ، مرسته کول

فتویٰ ونیسه په مخ کښې
پسې مټ کـړه په تقویٰ (رحمان بابا)

**ــــ کښېښودل** :- کوښښ کول. سعي کول. همت کول.

**د خپل ــــ په زور** :- (د + خ+ پل ــ پ+زو+ر)(پ تر ، تف) په خپل مټ کار کولو په وجه. په خپل قوت زور. محاورتاً په خپل محنت او کوښښ.

**په خپل ــــ** :- (پ + خ + پل ــــ)(و ــــ د خپل مټ په زور).

**متاک** :- (م + تا + ک)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) کلک ، هغه غوز چې هډوکے په کښې زیات او مغز یا چکې په کښې لږ وي. د یو ازغن بوټي نوم دے کوم چې ونه کېږي هم. هغه وړ یګے کس چې د خپل عمر نه ډېر چالاک او هوښیار وي. محاورتاً متاک سړے. بې فائدې یا بې خبره سړے. هغه څوک چې قد قامت ته وړوکے وي خو پاخهٔ وي ځینې لهجو کښې ,,چنه،، ورته هم وائي. محاوره کښې سخت طبیعته ته هم وئیلے شي.

**ــــ غوز په تندي ماتېدل** :- تندے تریو نیول یا تریو کول. تندے پړڅول. تندے ګرونجي کول. تندے ګونځې کول. د غصې اوتاؤ له کبله.

**متاکو** :- (م + تا + کو)(اس ، مذ) یو قسم بوټے دے چې په اوبو کښې کېږي.

**متاکه** :- (م + تا + که)(اس ، مو ، ج ــــ کې) په بدن راختونکې هغه دانه چې ابتداء کښې کلکه وي او خارښ کوي د وربې ، پیشوګې یا ماشي او کتمل د چیچلو یا الرجي په وجه را اووځي. اکثر ګرولو نه وروستو تنکې شي.

**ــــ کېدل** :- په بدن کښې یو ځاے لږ شان پړسېدل ، نینه چې پوره وُرته نهٔ شي او سخته شي.

**متاکي** :- (م + تا + کي)(اس ، جم) غنم چې لاله خپله پوسته باهر نهٔ وي راوتلے. په وربې یا خوشه کښې دننه غنم ، ګزارې.

**متاکې** :- (م + تا + کې)(اس ، مو ، ج) د ,,متاکه،، جمع ده. د ,,متاکه،، بدل شکل چې د مغیره ؤتوروسره راځي.

**متان** :- (م + تا +ن) د چړې چاقو د تېرهٔ کولو کاڼے. باټ سوان.

چې په درست عمر کښې یوځلې تېرهٔ شي
نــــور اصیله تــوره نهٔ غواړي متان (خوشحال)

**متائي** :- (م + تا + ئي)(هـ ، اس،مو) متیائي ، خوارهٔ ، شیریني.

**متخ** :- (م + تخ)(اس ، مذ ، ج ــــ ان) یو خړ رنګې مُلخ ، چې په وښو کښې بیا مونډے شي.

**متر** :- (م + تر)(اس ، جم) مشهوره سبزي ده چې د پلو شکل کښې وي. اومه هم خوړلے شي او پخولے هم شي.

**متک** :- (م + تک)(صف ، مذ ، مو ــــ ه) ناز یا نخره ، په ناز او نخرو تلل.

**مُتک** :- (مُ + تک)(اس ، مذ) موټے ، جلق ، په لاس کښې ,,څېز،، نیول او ځان خلاصول یعني مني ویستل.

**ــــ وهل** :- د نارینه خپل الت په لاس کښې وهلو سره مني خارجول. جلق وهل. مشت زني کول.

**مټکزي** :- (م + ټ + ک + زي)(اس ، مع) د خدرزئیو څانګه ده. استانه دي.

**مټکور** :- (مټ + کو + ر)(صف) غمژن ، خفه ، دلګیر.

**مټکور** :- (م + ټک + و + ر)(صف ،مذ ،مو ـ ه) شوم ، کنجوس.

**مټکي** :- (مُ / مو+ ټ +کي) متیک وهونکے، د موټکونو عادي، موټي وهونکے.

**مټکے** :- (مټ + کے)(اس ،مذ ،ج ــــ کي) وړوکے مټ ، وره چاټې یا منګے. وړوکے خم ، خمګے. د سرو یا سپینو یو کالے ، مټ ترونے ، بازوبند.

**مټګل** :- (مټ + ګل)(اس ، مذ) د چیکن یا د لاس داسې کار چې په لستونړو باندې کولے شي.

**متن** :- (م + تن)(صف ، مذ ، مو ــــ ه) متینه ځمکه یا خاوره.

**متن** :- (م + تن)(انګ ، اس ، مذ) د ګډ یا چیلي غوښه. نرۍ غوښه.

**ــــ چاپ** :- (ــــ چا + پ)(انګ تر ، مذ) د نرۍ غوښې نرۍ نرۍ ترازې. عموماً د سینې د غوښې نه جوړولے شي.

**متنګن** :- (م + تنګ + ګن)(اس ، مذ ، ج ــــ ان) د یو قسم ډېر وړوکي مُلخ نوم کوم چې اکثر د کروندې په وخت پټي کښې لیدے شي.

**متور** :- (م + تو + ر)(اس ، مذ) هغه څاروے یا بل څناور چې قبض شوے وي

**متور** :- (م + ټ + ور)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ــ ه) متیو واله یا متې لرونکے ، محاورتاً طاقتور ، زورور ، تکړه.

**مټ ورخه** :- (مټ + ور + خه)(اس مو) هغه زمکه چې اوبهٔ ورته په ګرانه ورخېژي. اوچته زمکه.

**متونګه** :- (م + تو + ن + ګَ)(اس ، مو ، ج ــ ګې) پړڅېدلے ، پړڅوب واله.

**متونګے** :- (م + تون + ګے)(اس ، مذ ، ج ــ ګي ، مو ــ ګه) د متیځې اولاد ، حرامي ، ولد زنا دغه (متوګے) او (متینګے) هم وئیلے کېږي.

**متوي** :- (م + ټ + وي)(اس ، جم) پُښتنې.

**مته** :- (م + ته)(اس ، صف) ورو (دتېز متضاد) په ,,مزه،، یا ورو ورو. په دمه ، په قلاره ، محاورتاً سُست.

**مته** :- (مه + ته)(اس ، مو ، ج ــ تې) پاکه او صفا خاوره یا ځمکه ، نرمه او سلېښناکه خاوره. (اس مع) پېښور او چارسده کښې د ځینو کلو نوم دے. بر سوات کښې پوره د یو تحصیل او سب ډویژن نوم دے. د ونې تنه.

اړم یا ستن (د کوټې یا برنډې) ایله ، په مشکله ، کوښښ. ځینې لهجو کښې د ,, مته ،، په ځاے ,,متې،، وائي.

**مته** :- (م + ته)(اس ، مذ) د شوملو دوبې.

**مِته** :- (مِ + ته)(اس ، مو ، ج ــ تې) د مالټې د خاندان مشهوره مېوه چې تازه وي نو شنه وي او نرے پوستکے لري. چې پخه وي خوږه وي او خوراک نه وروستو خولهٔ کښې لږ شان تریخوالے پرېږدي. او د منې د تبو ښهٔ علاج ګڼلے شي.

**مته** :- (م + ته)(اس ، مذ ، ج ــــ ې) مټ ، طاقت ، زور.

**مته کور** :- (م + ټ + کر)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) نیم پوخته ، چې پوره پخېدلو نه اګاهو ئې هوا اووهي یا پرې یخې اوبهٔ واچولے شي. او بیا په ډېر تاؤ هم نهٔ پخېږي. محاورتاً کلک ، سخت.

**مته کور** :- (مه + ته + کو + ر)(اسم صفت) د عمر په لحاظ له وخته مخکښې پوهېدل. پخنے ، پخنوټے. هغه کس چې په کار ځان ناجانه کړي.

**متي** :- (م + تي)(اس مع) د خانه بدوشو پاونده ؤ یو وړه شان قبیله ده. اوګورئ د ,, مته ،، پینځمه معنیٰ. د څناورو یوه بیماري چې مثانه په کښې خرابه شي.

**متي** :- (م + تي)(حرف تاکید) خواري سره د تاکید دپاره راځي. یعني متي خواري ، سخته خواري ، ډېر سخت محنت. لکه : په متي خوارۍ خپله روزي پیدا کول.

**متې** :- (م + تې) (هـ ، اس ، مو) د ګنې يوه ټوټه د يو کلي نوم (چغرمتې).

**متې** :- (م + تې) (اس ، مو) دوټې ، د شوملو/ شوملو د شاربلو مټ يا چاټې.

**متېخ** :- (م + تې + خ) (اس ، مذ ، ج ــــ ان) اوګورئ متېخ.

**متېړ** :- (م + تې + ړ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) چېړ چاړ ، ځان مخبنل (محاورتاً) ډډې جنګول ، کونه جنګول ، کونه مړل يا مخبنل . حمله کول ، هيه کول.

**متېران** :- (م + تې + ران) (اس ، مذ) شراب خانه.

**متېز** :- (م + تې + ز) (اس ، مذ ، مو ــ ج) مينه وال ، عاشق د متېزه مذکر دے. مروت (مټ) ميني ته وائي. متېز د (مټ) اسم صفت دے نو متېز وئيلے شي. (عاشق) ته. محاورتاً مرور.

**متېزک** :- (م + تې + ز + ک) (اس ، مذ ، ج ــ ان) د متېز اسم تصغير او يا وران نوم دے. محاورتاً هسې بې هېڅه مرور بېدونکي کس ته د طنز په توګه وئيلے شي.

**متېزکه** :- (م + تې + ز + که) (اس صف ، مؤ ، ج ــ کې) د "متېزه" ، اسم تصغير . زنانه ته د ښکنځلو په توګه وئيلے شي.

**متېزه** :- (م + تې + زه) (اس ، صف ، مو ، ج ــ زې) مئينه ، عاشقه ، مينه واله ، هغه زنانه خاص کر جينۍ چې د خپل کور د خلقو د صلاح يا رضا نه بغېر په خپل اختيار کور پرېږدي چا نارينه پسې د خاندان او کلي او دستور خلاف طريقه باندې د مېړۀ کولو په غرض لاړه شي . تښتېدلې ، ښګاره ، مروره (محاورتاً).

**متېن** :- (مه + تېن) (صفت) لونده او اوچه زمکه ، وتره.

**متېن** :- (مه + تېن) (صفت له متېنې خاورې جوړ.

**متېنګے** :- (م + تې + ن + ګے) (اس ، مذ ، ج ــ ګي) هغه ماشوم چې د چنغلې او د چنغول په خپله کښې د چنغلبازۍ په نتيجه کښې پېدا شي . (د پښتنو په ځينو قبيلو کښې هم د چنغلبازۍ رواج شته دے .) نور اوګورئ (متېونګے).

**متېنه** :- (م + تې + نه) (صف ، مو) هغه خټه چې د متې خاورې نه شوې وي.

**مثال** :- (م + ثا + ل) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) په شان ، په رنګ ، غوندې ، په څېر ، نظير ، مثل ، قيصه ، واقعه (چې د مثال په طور بيان شوې وي).

**مثالب** :- (م + ثا + لب) (ع ، اس ، ج) د "مثلبه" ، جمع ده . عيبونه ، نقصونه.

**مثالي** :- (م / مي + ثا + لي) (عف ، تر ، صف) د نمونې په توګه وړاندې کړے شوے څيز يا کلام . محاورتاً بې نظير ، بې مثاله .

**مثانه** :- (م + ثا + نه) (ع ، اس ، مو ، ج ــ نې) په بدن د ننه خېټې لاندې د يو اندام نوم چې متيازې په کښې جمع کېږي . د تشو متيازو پوکنۍ يا خوټيې . دننه سپوغوس.

**مثبت** :- (مُث + بِت) (ع ، صف) ثابت شوے ، ثبوت ته رسېدلے . محاورتاً ښۀ ، صحيح ، رسم / سمه ټيک ، برابر / برابره.

**مثقال** :- (مث + قا + ل) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د يو وړوکي وزن نوم دے . چې د څلورنيمو ماسو برابر وي.

هر شاعر ئې په وئيلو ګوت منډې کا
که په شعر کښې تۀ من ئې دے مثقال (خوشحال)

د سرو زرو يوه سکه.

**مثقب** :- (م + ث + ق + ب) د ترکاڼ يو اوزار چې سورے پرې کوي . برمه ، ډرل مشين.

**مثل** :- (م + ث + ل) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه / امثال) اوګورئ "مثال".

**مثل** :- (م + ثل) (ع ، مذ ، ج ـــ ونه / امثال) مثل ، ضرب المثل . قيصه ، واقعه ، چې د مثال په طور وئيلے شي.

**ضرب ـــ** :- (ضر = ب + ال ـــ) (ع ، تر ، اس ، مذ ، ج . الامثال) مثل.

**في + ال ـــ** :- (فل ـــ) (ع ، تر ، اس ، تف) د مثال په توګه . مثلاً.

**مثلاً** :- (م + ث + لن) (ع ، تف) د مثال په طور ، د مثال په ډول .

**مثلث** :- (م + ث + ل + لَ + ث) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) درې ګوټيځ شکل (جيوميټرۍ کښې) د شعرونو يو وزن ، چې درې رکنه لري . د درېو مصرعو يو بند .

**ـــ حادة الزاويه** :- (ـــ حا + د + ت + ال + زا + وي + ي) (ع ، تر و اس ، مذ) هغه مثلث چې درې واړه زاويې ئې "حاده" ، وي يعنې د نوي (۹۰) درجو نه هره يوه کمه وي.

**مثله** :- (مث + له) (ع ، اس ، مو ، ج ــ لې) په جنګ وغېره کښې د مړي يا مقتول غوږونه ، پوزه وغېره پرېکول.

**مثمر** :- (مُث + مر) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ثمر لرونکے ، ميوه دار . محاورتاً فائده مند ، نفع بخش . هغه کار وغېره چې ښۀ نتيجه ئې را ووځي.

**مثمن** :- (مُ ثم + من) (ع ، اس ، مف) هغه شکل چې اتۀ اړخونه يا بازوګان لري.

جام ته د راجي رندان د دار مدس وي
ځوان ته دې طامع مهان د باغ مثمن لا (حافظ)

(عروض) هغه وزن چې اتۀ رکنونه لري.

**مثنىٰ** :- (م + ثن + نا) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ ګانې) دوچند ، دوه دوېه . دوه ټکرې کړے شوے . دوه ځايه کړے شوے . نقل ، د اصل مطابق ، د هغې نقل . کاپي . هغه تورے چې دوه ټکي (نقطې) لري . لکه : ت هغه تورے چې دوه اعراب لري.

**ـــ به** :- (ـــ ب + هي) (ع ، تر ، اس) هغه اصل دستاويز يا کاغذ وغېره چې نقل ترې اخستے شوے وي.

**مثنوي** :- (مث + نه + وي) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ ګانې) د نظم يو قسم دے . چې وزن خوئې يو وي خو د هر يو شعر قافيه ئې د بل شعر نه جدا وي . ددې قسم نظم د شعرونو د شمار هېڅ نشته . د فارسي ژبې مشهور کتاب چې د جلال الدين رومي رح تصنيف دے او دے هم د مثنوي په انداز دے.

**مج** :- (مَجْ) (ع ، اس ، مذ) (ظفر) د شهدو يا شاتو موچې.

**مجاب** :- (م + جا + ب) (ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) هغه کس چې جواب ورکړے شوې وي . جواب ورکړے شوے ، جوابي شوے.

**مجادل** :- (م + جا + دل) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) جدل کوونکے ، جنګ کوونکے ، جګړه کوونکے ، جګړمار .

**مجادله** :- (م + جا + د + ل) (ع ، اس ، مو ، ج ــ لې / ات) جنګ ، جګړه ، دښمني ، ميرځي ، تکرار ، حجت ، بحث ، هنګامه.

**ـــ کول** :- جنګ کول ، جګړه کول ، مقابله کول.

**مجاذيب** :- (م + جا + ذي + ب) (ع ، اس ، ج) د "مجذوب" ، جمع ده . مجذوبان . بې ضرره او چپ چې سودايي شان ښکاري . محاورتاً ساده باده کس.

**مجار** :- (م + جا + ر) (اس مع) د هنګري اوسېدونکے ، ماګيار .

**مجارستان** :- (م + جا + ر س + تا + ن) (اس ، مع) د هنګري نومې ملک چې اوسېدونکو ته ئې مجار (واحد) مجاريان (جمع) وائي.

**مجاري** :- (م + جا + ري) (ع ، اس ، ج) د "مجري" ، جمع ده . د جاري کېدو ځاے.

**مجاريه** :- (م + جا + ري + يَ) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ يې) جاري شوے ،

مروجه ، نافذ شوے۔

**مجاز** :- (م + جا + ز) (ع ، اس ، صف ، تر) رؤ ، د لاز تېرېدلو ځاے ، ګودر ، د حقيقت په ضد يا برعکس تعلق يا معنٰی ۔ هغه چې ورته اختيار ورکړے شوے وي۔ د علمِ بيان يوه اصطلاح مثلاً د ,,مرسل ،، سابقه۔

**مجاز** :- (م + جا + ز) (اس ، مذ) د لذت او شوق نظر يا ښائسته ؤ سره لوبې ټوقې

**ـــــ سماعت** :- (ـــ س + ما + عت) (عف ، تر ، صف) د اورېدلو اختيار لرونکے ، هغه عدالت چې د کومې مقدمې د اورېدلو يعنې د مقدمې د کاروائي قانوني اختيار لري۔

**ـــــ وهل** :- ښائسته ؤ سره د مينې او شوق کتل راکتل او لوبې کول۔

**مجاز** :- (م + جا + ز) (ع و صف ، مذ ، مو ـــ ه) اجازت ورکړے شوے ، اجازه لرونکے ، د اختيار خاوند ۔پاس يا ټکټ لرونکے۔

**ـــــ کول** :- اجازت ورکول ،اجازه ورکول۔ اختيار ورکول۔

**مجازاً** :- (م + جا + زن) (ع + تف) د مجاز په طور ، په مجازي معنو کښې هغه لفظ وغېر چې په خپله اصلي معنٰی کښې نۀ وي استعمال شوے۔

**مجازاً** :- (م + جا + زاً) (ع ، مذ) بالفرض ، فرض کړه ، د فرض په توګه ، د مطلب په توګه۔ قانوناً ، د قانون مطابق۔

**مجازات** :- (م + جا + زا + ت) (ع ، اس ، فا) د بد عمل سزا ، د بدی بدله۔

**مجازي** :- (م + جا + زي) (ع ، مذ ، مو) د مجاز څخه دے ۔ يعني غېر حقيقي ، چې اصلي نۀ وي ۔فرض کړے شوے يا فرض ۔ نقلي ياجوړ کړے شوے او مصنوعي۔

**مجال** :(م + جا + ل) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه مېدان چې په کښې چکر وهلے شي۔

آب د سيند لاڅۀ مجال لري په بل کښې
د دنيـــا د چـــارې هېڅ نۀ وي مجـــال (رحمان بابا)

جولان ګاه ، محاورتاً طاقت ، قدرت زور ، حوصله ، جرأت۔

**مجالس** :- (م + جا +لس) (ع ، اس ، ج) د ,, مجلس ،، جمع ده ۔ مجلسونه ، غونډې ، اجتماع ګانې محفلونه ۔ د واحد په طور هم استعمال شوے دے۔

چې ئې تل د غوا و غېلو ته سورے وي
خداے دې واخله د بې دردو مجالسه (خوشحال)

**مجالست** :- (م + جا + ل + س + ت) (ع ، اس ، مذ) يو ځاے مجلس جوړونه ، يو ځاے کښېناستل يا ناسته۔

**مجامع** :- (م + جا + م + ع) (ع ، اس ،ج) د ,, مجمع ،، جمع ده ۔غونډې ، ټولې ، يو ځائې کېدنې۔

**مجامعت** :- (م +جا+م + ع + ت) (ع،اس ، مذ ،ج ـــ ونه) ښځې ســره کـــوروالے ، جمـاع ، هم بستري۔نزدېوالے۔

**مجانست** :- (م + جا + ن + ست) (ع ، اس ، مذ) هم جنسي ، يو جنس سره تعلق لرنه۔هم قوم کېدل۔

**مجانين** :- (م + جا + ني + ن) (ع ،اس ، ج) د ,, مجنون ،، جمع ده ۔مجنونان ، لېوني ، پاګلان۔

**مجاوبه** :- (م + جا + و + به) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ بې) خپلو کښې سره سوال جواب کول

**مجاور** :- (م + جا + ور) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) همسايه ، ګوانډي ، ګاونډي۔ منجاور ، منجور ، د کوم زيارت يا د درګاه خادم۔

**مجاورت** :- (م + جا + و+ رت) (ع ، اس ،مذ) نزدې والے ، قرب همسايه توب ، ګوانډ ګيري ، ګاونډ ګيري ، ګاونډي توب۔

**مجاوز** :- (م + جا + وز) (ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) د حد نه تجاوز کوونکے ، د حد نه اوړېدونکے يا حد نه تېرېدلو واله۔

**مجاوزه** :- (م + جا + و + زه) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ زې) د حد نه څخه تجاوز کول ، د حد نه تېرېدل۔

**مجاهد** :- (م + جا + هـ + د) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ين) د خداے په لار کښې جنګ کوونکے ، غازي ۔جهد کوونکے ، کوښښ کوونکے ، لاس و پښې وهونکے۔

**مجاهده** :- (م + جـــا + هـــ + ده) (ع ،اس،مـــو،ج ـــــ دې / ات) کوښښ،سعي،سخت کوښښ،د نفس وژنه ، رياضت، کافرانو سره جنګ۔

**مجاهدانه** :- (م +جا + هـ + دا+ نَ) (عف ، تر ، تف) د ,,مجاهد ،، غوندې ، د مجاهد په شان ، د غازيانو په انداز ۔ د ډېر سخت کوښښ او سعي په توګه ۔

**مجاهدين** :- (م + جا + هـ + دي + ن) (ع ، اس ، مذ ، ج) د ,, مجاهد ،، جمع ده ۔ جهاد کوونکے ، د خداے په لار کښې جنګېدونکي ، غازيان ۔

**مجبر** :- (م + ج + ب + ر) (ع ، اس ، فا ، مذ ،ج ـــ ان) جبر کوونکے ، تېرے کوونکے ، مجبورونکے۔

**مجبور** :- (م + ج + بو + ر) (ع ، اس ،مف ،مذ ، مو ـــ ه) هغه چې جبر پرې شوے وي۔لاچار ، بې وسه۔

**مجبوره** :- (مج + بو + ره) (عپ ، تر ، اس ، مف) د ,, مجبور ،، تانيث دے ، محاوره کښې ځينې وخت د مذکر دپاره هم استعمالېږي۔

**مجبوراً** :- (مج + بو + رن) د مجبورۍ حالت کښې د مجبورۍ له وجهې د بې وسۍ له امله۔

**مجبورئ** :- (م + ج + بو + ر + ئ) د ,, مجبوري ،، جمع ده ۔د ,,مجبوري ،، بدل شکل چې د مغيره ؤتوروسره راځي۔

**مجبوري** :- (م + ج + بو + ري) (عف تر ، اس ، مو) محاورتاً لاچاري ، بې وسي ، عاجزي حاجتمندي۔ چې بله لار ئې نۀ وي۔

**مجبور** :- (مج + بو + ر) (اسم ، حرف حاجت) هغه چې پرې جبر شوے وي ۔د مجبورۍ حالت کښې ۔

**مجبوريت** :- (مج + بو + ري + يت) د مجبورۍ حالت۔

**مجتبٰي** :- (مج + ت + با) (ع ، صف) غوره کړے يا چوڼ کړے يا خوښ کړے شوے۔ د رسول الله صلي الله عليه وسلم يو صفتي نوم دے۔

**مجتنب** :- (مج + ته + نب) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) اجتنـــاب کـــوونکے ، پرهېز کوونکے ، لرې اوسېدونکے ، ځان لرې ساتونکے ، د ,, ن ،، د زبر ( نَبْ) په حالت کښې ئې معنٰی هغه څيز يا کار دې چې ترې ځان بچ کړے شي۔يا ترې ځان لرې اوساتلے شي يا پرهېز ترې اوکړے شي۔

**مجتهد** :- (مج + ته + هد) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) اجتهاد کوونکے کس ، کوښښ کوونکے ۔ هغه کس (عالم) چې د دين په مسئلو کښې اجتهاد کوي

د شيع ګانو امام يا ديني پېشوا ۔

**مجتهدانه** :- (مج + ته + هدانه) (عف،تر،تف) د مجتهد غوندې يا په انداز۔

**مجد** :- (مج + د) (ع ، صف) لوے والے ،د شخصيت اوچت والے (دغسې) عظمت ، بزرګي يا شرف۔

**مجدد** :- (م+جد+دد) (ع ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) تجديد کوونکے ، نوے کوونکے ، موجودو اصطلاحاتو يا خيالاتو او تصوراتو ته عصري معنٰی ورکوونکے ۔د ديني احکامو او د هغې د فلسفې په عصري ژبه کښې تشريح کوونکے ۔

**مجدد الف ثاني** :- (م + جد + د + د + ال + ف + ثا + ني) (اسم ، مع ، صف) د

دوېمې زر کلیزې مجدد چې نوم ئې شیخ احمد سرهندي ( ۹۷۱ــ ۱۰۲۲هـ ) دے. یو تصنیف ,,مکتوبات،، ئې ډېر مشهور دے.

**مجدده** :- ( م + ج + دُ + دَ + دُ )( ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه ) د نوي سره کړے شوے ، تجدید شوے و نوے کړے شوے.

**مجذوب** :- ( م + ج + ذو + ب )( ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ــ ه ) هغه چې جذب کړے شي ، جذب شوے ( ځان ته ) رابنکلے شوے. د جذب خاوند ، د خداے تعالیٰ په مینه کښې داسې ډوب شي چې د خپله حاله هم خبر نهٔ وي. بې خوده، ډېر عاجز، بې خوده ، بې ضرره کس.

**ــــ محض** :- ( ــــ مح + ض ) خالص مجذوب ، بالکل مجذوب ، هغه چې ښهٔ مجذوب وي.

یا مجذوب محض وے چې په هېڅ نه پوهېدلے
غم ښادي ذلت عزت همـــه راته یکسان وے ( حافظ )
پـــه خندا خندا ځـــان اچـــوي بـــل اورته
خداے چې ځوک کړي په جذبه عشق مجذوب ( رحمان بابا )

**مجذوبیت** :- ( م + ج + ذو + بي + ي + ت )( ع ، اس ، مذ ) د مجذوب حالت ، مجذوب کېدنه ، مجذوب تیا و مجذوب والے. ( و ــــ مجذوب ).

**مجذور** :- ( م + ج + ذو + ر )( اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) یو عدد له چې په هم هغه عدد کښې ضرب ورکړے شي نو د داسې ضرب نه چې څهٔ حاصل شي هغې عدد ته مجذور وائي.

**مجذوم** :- ( م + ج + ذو + م )( ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه ) هغه سړے چې د جذام مریض وي. جذامي ، کوړي ، هغه مرض چې ګوتې یا نور اندام ئې تور شي او خپله غورزېږي. د برص مریض.

**مجرا** :- ( مج + را )( ع ، اس ،مو ، ج ــ ګانې / مجاري ) د بهېدلو ځاے ، د دریاب یا د نهر د اوبو لار چې په کښې بهېږي. نالې وغېره. دبهېدونکي خوړ یا سیند لوښے هغه لار یا لوښے چې د سیلاب اوبهٔ په کښې یا اوښي.

**مجرا** :- ( مج + را )( اسم ، واحد ، مذ / مو )اوګورئ ,, مُجره ،،.

**مجرب** :- ( م+ ج + ر+ ر+ ب )( ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه ) تجربه شوے ، ازمئیلے شوے ،کارګر.

چې له هرې ونې خوري پوهـ شي زهر
مجرب دے په جهـان کښې دا نظیر ( حمید )

**مجربات** :- ( م + ج + رُ + ر + با + ت )( اس ، ج ) تجربه شوي داروګان ، هغه داروګان یا د داروګانو نسخې چې ډېر ځله ازمېښت پرې شوے وي او کامیابه ثابت شوي وي. د طب د داسې قسمه کتابونو په نومونو کښې راځي. لکه مجربات د ابو علي سینا.

**مجرد** :- ( م + ج + رد )( ع ، اس ،مف ،مذ ،مو ــ ه ) یواځې ، ځانله ،تنها ،لونډ ، ناوادهٔ کړے کس هغه سړے چې له دنیا ګوښه شوے وي. تارک الدنیا.

**مجردات** :-( م + ج + ر + ر+ دا + ت )( ع ، اس ، مو ــ ج )د ,,مجرده ،، جمع ده. هغه څیزونه چې وجود نهٔ لري. بې وجوده مخلوق ، هغه څیزونه چې محسوسېدے نهٔ شي. فرښتې ، روحونه عقول عشره ، لس عقلونه.

**مجرم** :- ( مج + رم )( ع ،اس،مذ ،ج ــ ان / ین ) جرم کوونکے ،خطا کار ، ګنهګار ( په قانون کښې ) هغه سړے چې جرم پرې ثابت شي. ( تر کومې چې پرې جرم ثابت شوے نهٔ وي او مقدمه روانه وي ,, ملزم ،، بللے شي ) په خینو علاقو کښې مفرور ته هم وائي. هغه مجرم چې د قانون د ګرفت نه تښتېدلے وي او پټ ګرځي.

**مجرمه** :- ( مج + ر + مه )( اس ، مو ، ج ــ مې / انې ) د ,, مجرم ،، تانیث دے.

**مجروح** :- ( مج + رو + ح )( ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه ) زخمي ، زخمي شوے ، ګائل ، خوږ شوے ، ژوبل ، پرهري چې جرح پرې شوې وي یا اوشي. هغه بیان چې ناقابل قبول وي.

**ــــ کول** :- زخمي کول ، زخم ور رسول ، ژوبل / جوبل کول ، ګائل کول.

**مجرور** :- ( م + ج + رو + ر )( ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ــ ه )( ګرائمر کښې ) هغه لفظ چې د جار تورے ورسره راغلے وي.

**مجره** :- ( م + ج + ر + ه )( اس ، فعل ، مذ ، مو ، ج ــ رې ) حسابول ، ګڼل ، په ځاے یا بدل کښې منل. ادب راؤړل. په ادب سلام کول. په وادهٔ ښادۍ کښې د ډمانو د سندرغاړو مجلس ، ټنګ ټکور ، صرف او صرف د سحر د وخت یا مابنام ګډا. هغه نظم یعني مرثیه چې د رباعي ، غزل ، قطعې یا قصیدې په شکل کښې وي او په مطلع کښې ئې سلام او اداب بیان شوي وي. چا هستۍ ته رسایي. ملازمت یا نائیک ، افسر ، یا بادشاه له خوا انعام یا تحفه.

پس له دې توبه په خولهٔ حدیث په پوزه
بس کړه مه کړه زور منم واړه مجرې ستا ( بېدل )
ښېنتانهٔ لره شرې انډېرے بس دے
نهٔ اغوستے د مغـــل د مجرې شال ( خوشحال )

**مجره** :- ( م + ج + ر + را ) کهکشان.

**مجري** :- ( م + ج + ري )( ع ، اس ، فا ) هغه سړے چې د حکم په عمل کښې راولي. یا ( د حکم مطابق ) سزا ورکوي. د خداے تعالیٰ صفتي نوم. بهوونکے ، بیوونکے.

**مجزا** :- ( م + خ + ب + را )( و ــــ مجزي ).

**مجزوم** :- ( م + ج + زو + م )( ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه ) هغه تورے چې پرې د جزم یا غړوندې سکون علامت وي. پرېکړے شوے ، قطع شوے. هغه خبره وغېره چې یقین پرې شوے وي.

**مجزّی** :- ( م + جز + زا )( ع ، اس ، صف ) ټکړې ټکړې کړے شوے. ټوټې ټوټې ، پاره پاره کړے. جدا ، بېل.

**مجسم** :- ( م + جس + سم ) جسم لرونکے ، هغه څهٔ چې جسم ( وجود ) اولري یا لري.

**مجسمه** :- ( م + ج + س + س + م )( عپ ، تر ، صف ، مو ، ج ــ مې ) د ,, مجسم ،، تانیث دے. بُت چې د کوم کلک څیز څخه تراشلے شوے وي یا په قالب او سانچه کښې جوړ کړے شوے وي.

**ــــ ساز** :- ( ـــ سا + ز )( عف ، تر ، مذ ، ج ــ ان / مو ــ ه ) هغه سړے چې د کاڼي یا د فلزونو نه د بني ادمانو بتان جوړوي. مجسمې جوړوونکے ، مجسمه ساز ، سنګتراش.

**ــــ سازي** :- ( ـــ سا + زي )( عف ، تر ، اس ، مو ) د مجسمو د جوړولو فن ، د بني ادمو وغېره د بتانو جوړولو فن. بت تراشي ، سنګ تراشي.

**مجلات** :- ( م + جل + لا + ت ) د ,, مجله ،، جمع ده. ( و ــــ مجله ).

**مجلد** :- ( م + ج + ل + لَ + د )( ع ، اس مف ، مذ ، مو ــ ه ) جلد کړے شوے ، ګنډلے شوے. قاپو واله ، جلد واله، کانټو واله.

**مجلس** :- ( م + ج + ل + س )( ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / مجالس ) د ناستې ځاے ، ناستے ، محفل ، ټولے ، انجمن ، ډله. هغه محفل چې په کښې کوم سندرغاړے ( ډم یا ډمه وغېره ) سندرې وائي. ټنګ ټکور. سره ناسته ، میټنګ ، ملاقات.

**ــــ عامله** :- ( ــ(س) عا + م + ل )( عف تر ،اس، مذ ) دمنتخب شوو غړو هغه غونډه چې عملاً د ټول جماعت د کار ذمه داره وي . ( انګ: ورکنګ کمېټي )

**مجلسي** :- ( مج + ل + سي )( عپ تر ، اس ) مجلس کوونکے ، مجلس سره تعلق لرونکے ،سندرغاړے ،ډم (محاورتاً ).

**مجلکه** :- (م + جل + که) (و ـــ مچلکه).

**مجلون** :- (مج + لو + ن) (و ـــ مجنون).

**مجله** :- (مُ/مَ + ج + لْ/ لَ) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ ې / ات) رساله ، میګزین.

**مجلي** :- (م + جل + لا) (ع ، صف) جلا یا ځلا ورکوونکے ، صفا کوونکے ، پرقوونکے.

**مجمر** :- (مج + مر) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) نغرے یا انګیټۍ .هغه لوښے چې په کښې انګار (سرۀ کړي سکارۀ) کښېښودے شي او په کښې څۀ بوټي یا څیز لوګولے شي.

زۀ ئې یار هسې زیست کړم په جهان کښې
لکه زیست وي په مجمر کښې د سپند (رحمان بابا)

**مجمع** :- (مج + مع) (ع ، اس ، مذ ، ج : ے / مجامع) د خلقو جمع ، غونډه ، ډله د یو ځاے کېدلو ځاے.

**مجمل** :- (مج + مل) (ع ،صف ، مذ ، مو ـــ ه) اجمال لرونکے ، غېر واضح مختصر ، لنډ ، خلاصه.

**مجملاً** :- (مج + م + لاً) (ع ، تف) په لنډه ، خلاصتاً.

**مجمله** :- (مج + م + له) غېر واضحه ، (محاورتاً) نیمګړې خبره یا کار چې نیمګړې پرېښودے شي.

**مجموعه** :- (مج + مو + عه) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ عې) راجمع کړے شوي څیزونه یا لیکونه رایو ځاے کړے شوي څیزونه او نور.

**مجمه** :- (مج + مه) (اس ، مو ، ج ـــ مې) مسینه غورۍ ، د وریژو لوے یا وړوکے تال چې ژۍ ئې لوړې نۀ وي.ګول ماګول پتنوس.

**مجنون** :- (مج + نو + ن) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) لېونے ، پاګل ، سودائي ، د عربو د مشهورې روماني قیصې هیرو.چې اصل نوم ئې قېس ښودلے شي.په لیلی مئین وۀ او د هغې په عشق کښې لېونے شوے وۀ. عاشق ، مئین ، ډېر سخت مئین.

**مجنونیت** :- (مج + نو + نی + یت) (ع ، اس ، مذ) لېونتوب ، دیوانګي ، سودائي توب.

**مجوز** :- (م + جو + وز) (ع ، اس فا / صف ،مذ ، مو ـــ ه) تجویز کوونکے ، رائې ورکوونکے ، جائز ګرځوونکے ، روا ګرځوونکے.

**مجوز** :- (م + جو + وز) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) تجویز کړے .جائز کړے ، جائز ګرځولے شوے ، روا کړے شوے.

**مجوزه** :- (م + جو + و + ز) (ع ، مف ، مو د ,, مجوز ،، تانیث دے . تجویز کړې ، تجویز شوې.لکه : مجوزه قانون.

**مجوس** :- (م + جو + س) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د مجوسي جمع ده.اتش پرست ، د هور عبادت کوونکي.

**مجوسي** :- (م + جو + سي) (اس ، مذ ، ج ـــ ان / مجوس) اتش پرست ، چې هور ته سجده کوي ، چې د هور عبادت کوي.

**مجوسیت** :- (م + جو + سي + یت) (ع تر ،اس ،مذ) مجوس کېدنه ،اتش پرستي.

**مجوف** :- (م + جو + وف) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) ډډ ، هغه څیز چې د دننه نه خالي وي.

**مجهز** :- (م + جه + هز) (ع ، اس / صف ، مذ ، مو ـــ ه) ورکوونکے ، رسوونکے ، فراهم کوونکے.بېل کړے شوے / شوي.څۀ خاص مقصد دپاره څۀ رقم یا څیز اېښودے شوے.

**مجهول** :- (مج + هو + ل) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) غېر واضح (غېر) (ګرامر) هغه فعل چې فاعل ئې جمله کښې نۀ وي خو جمله په هر لحاظ پوره وي. سست ، کاهل (جبر و مقابله) هغه مقدارونه چې قیمت ئې معلومول غواړي.نامعلومه ، رقم.

**مجی** :- (م + جی) (اس ، مو) ناقه ، اوښه.

**مجیب** :- (م + جي + ب) (ع ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) جواب ورکوونکے ، قبلوونکے ، د خداے پاک یو صفاتي نوم دے.

**مجید** :- (م + جي + د) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) د مجد خاوند ، بزرګ ، لویې لرونکے ، عظمت لرونکے.

م- مـجـیـد کلام الله دے
پـــرې ئې نۀ بردې حبـل الله دے (حافظ)

د خداے پاک یو صفتي نوم دے.

**مجیدي** :- (م + جي + دي) (ت ، اس ، مو) د ترُکي د یوې سکې نوم دے.

**مجیر** :- (م + جي + ر) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) پناه ورکوونکے ، ملګرے ، امداد کوونکے ، حامي ، حمایتي ، د الله پاک یو صفتي نوم.

**مځکه** :- (م + ځ + که) (اس ، مو ، ج ـــ کې) ځمکه جائداد چې د کرکرونډې ځمکه مشتمل وي.

**مځکې** :- (م + ځۀ + کې) د ,, مځکه ،، جمع ده.

**مُچ** :- (مُچ) (هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د تینډک یا تېوکر خوړلو په وجه په پښه کښې کوږوالے پېدا کېدل ، چې بنده په لاره سم نشي تلے.تینډک (هـ ـ موچ).

**مچ** :- (مچ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) مشهور وړوکے الوتونکے چینجے چې په ګندګۍ کښې پېدا کېږي او ګندګي خوري.(ف ـ مګس ، ار : مکهی).

مچ پرانګ :- (مچ + پران + ګ) (مو تر ، اس ، مذ) غټ مچ ، خرمچ ، هغه مچ چې اکثر په ځارو کښېني.جولا ، غنې ، عنکبوت.

**مچان** :- (م + چا + ن) (اس ، مذ ، ج) د مچ جمع ده.

**مچچکے** :- (مه + چوچ + کے) (اس ، مذ) مچوچکے ،د مچانو هکۍ یا هغه جراثیم چې په زخمونو باندې د مچانو د کښېناستلو په وجه پېدا شي او زخم خراب شي.

**مچچکے** :- (مه + چچ + کے) (اس ، مذ) د یو بوټي نوم دے چې د دارو په توګه پکار راوستلے شي.مځځکے هم وئیلے او لیکلے شي.

**مچخ** :- (مه + چخ) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) زېړ رنګې مولخ چې ډېر ضرري دے او د ونو بوټو پاڼې خوري.

**مچختے** :- (مه + چخ + تے) (و ـــ مچچکے).

**مچخړے** :- (مچ + خ + ړے) (و ـــ مچچکے).

**مچر** :- (م + چر) (اس ، مذ) د ونو تنکۍ ښانګې.

**مچرکے** :- (م + چر + کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) د ,, مچر ،، تصغیر دے .نرۍ ښانګه د ونې پاڼه او ښانګه چې نوې راوتې وي.

**مچرۍ** :- (مچ + رۍ) (و ـــ مچړۍ).

**مچړۍ** :- (مچ + ړۍ) (اس ، مذ) مچردانۍ ، د ماشو نه د بچ کېدلو دپاره د نرۍ جالۍ نه جوړه شوې ډولۍ.میاشکوډۍ.

**مچ شړ** :- (مچ + شړ) (اس ، مذ) مچ شړونے

د غم مچ به ئې تباخ ته نزدې نۀ شي
چې په لاس ئې وي د زلفو مچ شړونے (خوشحال)

**مچغنه** :- (م + چغ + نه) (اس ، مو ، ج ـــ نې) د کاڼي یا ګټې لرې ویشتلو یوه وسیله ده.د لاس د خپېړې هومره پټه او ګز / یو نیم ګز د ګوتې هومره غټ مزي یا پړي دوه لرونه لري.په پټه کښې کاڼے / ګټه چې په عامه توګه تر پاؤ پورې وزن لري اېښودے شي او بیا ئې د سره تاؤ کړي یو لړ پرېږدي بل د لاس یوه ګوته کښې ننښلولے شوے وي او دا شان کاڼے بنۀ لرې او کاڼے / ګټه بنۀ په تاؤ تیزۍ کښې اوویشتے شي.اکثر ئې واړۀ او ځوانان د

جنگونو په وخت استعمالوي. د ماشومانو یوه وسله ده چې ,,مچلوغزه،، ، مچوغزه او مچوغنه هم ورته وئیلے شي.

**مچک** :- ( م + چک ) اوږد لرگے ، چې په سر کښې ئې کونډه لگېدلې وي. ددې په ذریعه د ونو څانگې راښکته کولے شي او پانې پرې راتروړلے شي.

**مچک** :- ( م + چک )( اس ، جم ) مسور ، د مسورو دال.

**مچکه** :-( مچ + که )( اس ،مو ،ج ـ کې ) مچه ، بوسه ، ښکلونه ،خولۀ ( اخستل ) ، پپه ( اخستل ).

**مچکي** :- ( مچ + کي )( اس ، مذ ) د ټوپک یو ( پخوانے ) قسم.

**مچکیره** :- ( مچ + کي + ر )( اس ، مو ، ج ـــ رې ) د شاتو مچۍ.

**مچگے** :- ( مچ + گے )( اس ، مذ ، ج ـ گي ) هغه دوه ورې تختې چې جولاگان پرې پېښې کښېږدي او تنسته اودي.

**مچلک** :-( مچ + لک )( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د مچوغنې په دوه ؤ لړونو کښې د نرۍ سر واله لړ ـ چې د کاڼي د ویشتلو په وخت دغه سر ایله کولے شي. مچلوکے.

**مچلکه** :-( م + چل + که )( ت ، اس ، مو ، ج ـــ کې ) هغه عهد نامه یا اقرار نامه چې ملزم ئې د یو جرم د بیا نۀ کولو په لړ کښې عدالت کښې کوي او که اوئې کړي نو عدالت ته به حاضرېږي او مقرره جرمانه به ورکوي. هم دا قسمه عهدنامه یا اقرار نامه که د ملزم له خوا بل څوک اوکړي نو هغې ته ضمانت وئیلے شي. دا مچلکه هم وئیلے شي.

د قاضي په مچلکه مه حاضرېږه

د ملوک له مجلسونو ووېرېږه ( سکندر خان ختک )

**مچلوغزه** :- ( مچ + لوغ + زۀ )( و ـــ مچغنه ).

**مچلۍ** :- ( مچ + لۍ )( اس ، مو ) دا د ,, م ،، په ( ُ ) هم وئیلے شي. یعني مُچلۍ. دا اصلاً د سر ، تندي یا پوزې غوړونو د کالو ( زېوراتو ) د یوې برخې نوم دے. د ټیک یا دورونو هغه ځوړنده واړۀ واړۀ پترې چې ځینې وخت مشکښې هم په کښې وي اوږدۀ هم وي او لنډې هم. او کال سره لکه د پونډرو غونډې ځوړند زانگي. شکل ئې اکثر د کبانو / مهیانو غونډې وي.

د ټیکې مچلۍ رسته لکه نیران ده

کـه یـاقوت د عالم په زړۀ افگار ( اشرف هجري )

**مچمچۍ** :- ( مچ + مه + چۍ )( اس ، مو ) د شهدو یا شاتو مچۍ.

**مچنه** :-( مُ + چه + نه )( اس ، مو ،ج ـ رې ) موچنه، پنه ، پېزار.

**مچنوغزه** :- ( مچ + نوغ + زه )( و ـــ مچغنه ).

**مچو** :- ( مو + چو )( و ـــ مچۍ ).

**مچو** :- ( م + چو )( اس ، مو ) مچه ، بوسه ، خولۀ ، خولگۍ.

**مچواڑے** :- ( مچ + وا + ڑے )( و ـــ مخ شړې ).

**مچوړې** :- ( م + چو + ړې )( اس ، مذ )اوږدې جرابې.

**مچوړې** :- ( م + چو + ړې )( صف ) چوڼ چوڼ ، غوټې غوټې.

**مچوغونډه** :- ( م + چو + غون + ډه )( و ـــ مچغنه ).

**مچوغزه** :-( م + چوغ + زه )( و ـــ مچغنه ).

**مچوقنه** :-( م + چوق + نه )( و ـــ مچغنه ).

**مچول** :- ( م + چه + ول ) چومل ، ښکلول ، خولۀ اخیستل ، بوسه اخیستل.

**مچونه** :-( م + چ + ؤ + نه )( حمص ) ښکلونه ، بوسه اخیستنه.

**مچوونے** :-( م + چه + وو + نے )( و ـــ مچوونکے ).

**مچوونکے** :-( م + چ + وون + کے )( اس ، فا ، ج ـــ کي ) ښکلوونکے ، بوسه / پوسه اخیستونکے.

**مچووڼے** :- ( م + چ + وو + نے + ڼے )( و ـــ مچ شړونے ).

**مچه** :- ( مه + چه )( اس ، مو ، ج ـــ چې ) بوسه ، خولۀ.

څـو مـې یـاد د هغـې خـولې د مچې خونـد دے

نـــور مـــې کـــل لـــه دلـــه هېـــر دے تلـــذذ

د مچ مؤنث.

ودانے د درست جهان په محبت شي

راشـه گـــوره محبت د مچ د مچې ( خوشحال )

**مچۍ** :- ( م + چۍ )( اس ، مو ) د شاتو مچۍ ، سره مچۍ ډمبور ( زنبور ).

**مچې مُوچې** :- ( م + چې + مو + چې )( پ تر ، اس ، مذ ) سره خولې اخیستل ، ورکول ، سره یو بل ښکلول او پپې کول ، بوسه بازي کول.

**مچیمار** :- ( م + چي + ما + ر )( هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ان ) د مهیانو نیونکے ،د کبانو نیونکے ماهي گیر ،ماهي گر.

**مڅرغ** :- ( متس + رغ )( اس ، مذ ، جم ) د اوښانو خوراک ( گیاه وغېره ).

**مڅـرک** :- ( مـتس + رک )( اس ، مـذ ، ج ـــ ان ) چرمښـکۍ ، څرمښـکۍ ، بیبیاتو. تانیث : مڅرکه.

**مڅوڅک** :- ( م + څو + څک )( اس ، مذ ، مـو ـــ ه ) د هوسۍ بچے ، هر هغه څیز چې د سړي خوږ لگي او مینه ورسره کولے شي.

**مڅوڅکې** :- ( م + څوڅ + کې )( اس ، مذ ) یو قسم زېړ رنگې گیاه ده چې په ژوره زمکه کښې کېږي او ځینې په دارو کښې هم استعمالېږي.

**محـاذ** :- ( مَ / مُ + حـا + ذ )( ع ، اس ، مـذ ، ج ـــ ونـه / ات ) د مقـابلې ځـاے یـا مېدان مخامخ ، مقابل.

**محارب** :- ( م + حا + ر + ب )( ع ، صف ، مذ ، ج ـــ ان / ین ) جنگ کولو واله.

**محاربه** :- ( م + حا + ر + ب )( ع ، اس ، مو ، ج ـــ بې / ات ) جنگ ، معرکه.

**محاسب** :- ( م + حا + سب )( ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ین ) حســاب کتــاب کولـو والـه ، د یـوې ادارې د خرچ امـد حسـاب سـاتلو والـه ( اکاؤنټنټ )، حساب دان.

**محاسبه** :- ( م + حا + س + ب )( اس ، مـو ، ج ـــ بې ) شمېر ، شمېره ،حساب کتاب کونه حساب کتاب غوښتنه.

**محاســن** :- ( م + حـا + سـن )( ع ، اس ، ج ) د ,, حسـن ،، جمع ده. خـوبۍ ، خوبیانې ، ښۀ خصلتونه ، ښېگړې.

په محاسن به دې گواه شي په هر ځاے کښې عالم

چې تحسین کوي شي ،دبدۍ نسبت وچاته نکړې ( حافظ )

**محاصر** :- ( م + حا + صر )( ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ین ) محاصره کوونکے ، ور چاپېره کېدونکے ، گېره اچوونکے.

**محاصر** :- ( م + حا + صر )( ع ، اس ، مف ، مذ ، ج ـــ ان / ین ) راگېر شوے ، هغه چې په محاصره کښې راگېر شوے وي. قلعه بند ، په قلعه کښې راحصار.

**محاصره** :- ( م + حا + ص + ره )( ع ، اس ، مـو ، ج ـــ رې ) گېره ، راگېرونه ، ورچاپېره کېدنه.

**محاصل** :- ( م+حا + صل )( ع ، اس ، ج ) د ,, محصـول ،، جمع ده. حاصلات ، کـوم څیـز چې حاصـل شي پېداوار ، امـدن. حاصلات یـا محصـولونه وصولوونکي.

له وطنه مې په هر زمان اوباسي

رقیبان ئې راپسې کړۀ محاصل ( رحمان بابا )

**محاضـره** :- ( م + حـا + ض + ر )( ع ، اس ، مـو ، ج ـــ رې ) حاضر جـوابي ، د سوال په جواب ، ورکولو کښې مړتوب.

**محاط** :- ( م + حا + ت )( ع ، صف ) راگېر ، احاطه شوے ، گېر شوے ، لکه : افغانستان په وچې محاط دے.

**محافظ** :- ( م + حا + فظ )( ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ین ) حفاظت کـوونکے

، څوکیدار ، نگهبان ، ساتندویه ، سرپرست ، ولي۔
**محافظت** :- (م + حا + ف + ظت)(ع ، اس ، مذ) محافظه ، حفاظت کونه ، حفاظت۔
**محافل** :-(م + حا + فل)(ع ، اس ، ج) د محفل جمع ده ۔ محفلونه ، مجلسونه ، غونډې۔
**محاق** :- (م + حا + ق)(ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د سپوږمۍ په کمي راتلنه ، هغه ورځې چې سپوږمۍ په کښې په کمېدو شي ۔دا د هرې میاشتې پینځلسم تاریخ نه شروع کېږي۔د سپوږمۍ د میاشتې اخري درې ورځې چې سپوږمۍ په کښې نۀ ښکاريږي۔
(یادګیرنه :- دا لفظ د ,,میم،، زور ، زبر او پېښ درې واړو حرکتونو سره وئیلے شي)۔
**محاکات** :- (م + حا + کا + ت)(ع ، اس ، ج) خپلو کښې خبرې اترې کول ، سره یو بل ته قیصې وئیل۔ سره یو شان والے۔ د کوم څیز پېښې یا د چا د کړو وړو یا نقل کول۔
**محاکمه** :- (م + حا + ک + م)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ مې / ات) د مقدمې د فیصلې دپاره حاکم له تلل ، انصاف غوښتنه ، د فیصلې دعویٰ۔ د دربم ګړي په حېثیت فېصله کول۔
**محال** :- (م + حا + ل)(اس ، ج) د ,,محل،، جمع ده ،محلونه ، محلات ، مانۍ (د واحد په حېث) هغه زمکې چې په کښې ډېر پټې وي او ددې زمکو مالیه د نورو نه جدا مقرورلے شي۔ (جمع محالونه) هغه جائیداد چې له خپل ځایه بل ځاے ته نشي وړلے کېدے۔ غېر منقوله جائیداد۔
**محال** :- (مُ + حا + ل)(ع ،صف،مذ،مو ـــــ ه) ناممکن ،ناشونے،ګران ،دشوار۔

بل بادشاه لره محال دے هلک د زړونو
مګر مخ د چا محمود وي خال ایاز (رحمان بابا)

**محالات** :- (م + حا + لا + ت) د ,,محال،، جمع ده ۔ ناممکنات ، ناشوني ، اوتې بوتې ، بکواس۔
**محامد**:- (م + حا + مد)(اس ، ج) د ,,محمدت،، جمع ده ۔ښه والے ، خوبۍ ، خوبیاني ، ښۀ خویونه۔
**محامي** :- (م + حا + مي)(ع ، اس ، مذ) حمایت کوونکے ،مرسته کوونکے ۔ پره یا سرپرستي کوونکے ،بچ کوونکے، سبل ګرے۔
**محاوره** :- (م + حا + و + ر)(ع ، اس ، مو ، ج ــــ رې) خپله ژبه یا خپله کړې ژبه کښې خبرې اترې چې د جملو د لغتونو معنٰی ګاڼې ئې ارومرو لغت نامه کښې هماغه نۀ وي۔بلکه په استعاره مبني وي۔ عادت یا مشق یا مهارت۔
**ــــــ لرل** :- مهارت لرل ، ښۀ مشق لرل۔
**محب** :- (مُ + حب)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) محبت کوونکے،مینه کوونکے ، دوست ، شفقت کوونکے ، شفیق ، د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي۔

هغه څۀ پوښتې له هجره له وصاله
چې پخپله هم محب شي هم محبوب (رحمان بابا)

**محبت** :- (م + حب + بت)(ع ،اس، مذ،ج ــــ ونه) مینه،الفت ، عشق ، دوستي ، یاري ، یارانه ، د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي۔
**محبس** :- (مح + بس)(ع ،اس ،مذ،ج ـــــ ونه) قېدخانه، جېل خانه ، جېل ، بندي خانه ، زندان۔
**محبوب** :- (مح + بو + ب)(ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) هغه چې محبت ورسره کولے شي۔معشوقه ،معشوق، دلربا ،دلدار، ډېر خوښ څیز یا کار وغېره
**محبوبا** :- (مح + بو + با)(عپ ، تر،اس ، مو ، ج ــــ ګانې) معشوقه ، دلبره ، د یو مشهور پښتني رومان ,,جلات محبوبا،، هیروئنه۔
**محبوبه** :- (مح + بو + به) د ,,محبوب،، تانیث دے۔
**محبوبیت** :- (مح + بو + بي + یت)(ع ،اس ، مذ) مینه پېدا کېدل ، عشق کېدل۔
**محبوس** :- (مح + بو + س)(اس ، مف ، ج ـــ ان / ین) هغه چې په حبس کښې پروت وي ، بندي ، قیدي ، بندیوان ، اسیر۔
**محتاج** :- (مح + تا + ج)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) حاجتمند ، ضرورت مند ، موتازه ، پامته دار۔
**محتاجي** :- (مح + تا + جي)(عف ، تر،اس،مو) موتازي ، حاجتمندي ، ضرورتمندي ،پامتداري۔
**محتاط** :-(مح + تا + ط)(ع ، اس ، صف، مذ ، مو ـــ ه) احتیاط کوؤنکے۔
**محتال** :- (مح + تا + ل)(ع ، صف ،مذ ،مو ـــ ه) نانه ګرکے ، مکار ، چلولي ، ګتکېمار۔
**محتاله** :- (مح ، تا ، ل)(عف ، تر ، صف) د ,,محال،، تانیث دے ۔ مکار ، بانې ګرکې ، چلولي ښځه۔دلاله ، بدچلنده ، فاحشه ښځه ، خرابه ښځه۔
**محتجب** :- (مح + ت + جب)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) په حجاب کښې اوسېدونکے ، پټېدونکے ، محاورتاً په ډډه ، یو خواته۔
**محترز** :-(مح + ت + ر + ز)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه)احتراز کوؤنکے ، پرهېز کوؤنکے ، ځان ژغورؤنکے ، ځان ساتونکے ، ډډه کوؤنکے ، ځان بچ کوؤنکے
**محترس** :- (مح ، ت ، رس)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) څوکۍ کوؤنکے ، ساتنه کوؤنکے۔
**محترق** :- (مح + رق)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) سوے ، سوځېدلے ، بل شوے۔
**محترق** :- (مح + ت + رق)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هور لګوؤنکے ، سوځوؤنکے ، بلوؤنکے۔
**محترم** :- (مح + ت + رم)(ع ،صف ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) د احترام قابل ، د تعظیم وړ ، د عزت وړ ، عزتمند۔
**محترمات** :- (مح + ت + ر + ما + ت)(ع ،اس ، مو ، ج) محترمې زنانه ، عزتمنې مېرمنې۔
**محتذر** :- (مح + ت + ذر)(اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه څیز چې ویره ترې کېږي
**محتذر** :- (م + ت + ذ + ر)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ویروؤنکے ، محتاط ، هوښیار ، محاورتاً ویښ۔
**محتسب** :- (مح + ت + سب)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) حساب کوؤنکے ، داعمالو وغېره محاسبه کوؤنکے ۔ هغه حاکم چې د شریعت نه خلاف کارونو حساب اخلي۔

په دا ښهر کښې څرګند شراب خرڅېږي
محتسب د بـــاده نوشـو رعایت کا (خوشحال)

د پولیس افسر ته هم وائي۔
**محتشم** :- (مح + ت + شم)(ع ، صف ، مذ ، ج ـــ ان / ین) احتشام لروںکے ، شان شوکت واله۔شته من ، دولتمند ، مور ، مالدار۔
**محتکر** :- (مح + ت + کر)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه کس (تجارتي) چې د ګرانۍ په غرض غلې دانې ذخیره کوي۔ ذخیره اندوز۔
**محتلم** :- (مح + ت + لم)(ع ، صف) هغه څوک چې په اودو پرې لامبا واوړي۔ هغه چې خوب کښې خلاص شي۔
**محتوي** :- (مح + ته + وي)(ع ، صف) راګېروؤنکے ، احاطه کوؤنکے ، حاوي

-شامل ، دننه.

**محتویات**:- (مح+ته+وي+یا+ت)(ع ، اس مو ، ج) د "محتوي"، جمع ده.

**محجوب**:- (مح+جو+ب)(ع ، اس ، مف ، مذ ، موــه) په حجاب کښې پټ ، په پرده کښې.نادم ، شرمنده ، ټيټ سترګې ، پښېمانه ، حیادار.

**محجوبانه**:- (مح+جو+با+نه)(عف ، تر ، تف) د شرم او حیا په انداز. د شرم او حیاء له لارې ، په دغسې طریقه.

**محجوج**:- (مح+جو+ج)(ع ، اس ، مف ، مذ ، موــه) هغه سړے چې دلیل سره قائله کړے شوے وي.

**محجور**:- (مح+جو+ر)(ع ، اس مف ، مذ ، موــه) منع کړے شوے. حرام.

**محدب**:- (م+حد+دب)(ع ، صف ، مذ ، موــه) بوغوتې ، پړڅېدل (سطحې واله) بهرطرفته ګول ماګول وتلې (سطحې واله).

**محدبه**:- (م+حد+د+به)(ع ، پ ، صف ،مو) د "محدب"، تانیث دے.

**محدث**:- (م+حد+دث)(ع ،صف ، اس ،مذ ،ج-ان / ین ،موــه) د حدیثو عالم، د حدیثو د علم عالم.

**محدث**:- (م+ح+دث)(ع ، اس ، فا ، ج-ان / ین)هغه سړے کوم چې نوې خبره راوباسي.ایجاد کوؤنکے.هغه چې ناڅاپه ئې اودس مات شي.

**محدود**:- (مح+دو+د)(ع ، اس ، مف ، مذ ، موــه) په حدونو کښې دننه ، په حدونو، پولو کښې ګېر.لم (شمېر یا مقدار کښې).

**محدودیت**:- (مح+دو+دي+یت) محدودوالے.

**محذوف**:- (مح+ذو+ف)(ع ، اس ، مف ، مذ، موــه) حذف کړے شوے.وېستلے شوے.لرې کړے شوے.

**محذور**:- (مح+ذو+ر)(ع ، اس ، مف ، مذ ، موــه) وېرېدلے ، ترهېدلے.

**محراب**:- (مح+را+ب) (اس ، مذ ، ج-ونه) په جماعت (مسجد) کښې د امامت په وخت د پېش امام د اودرېدلو ځاے چې په خاص طریقه جوړ شوے وي. ډاټ ، ګول چوکاټ یا دروازه. وسله.

په شپه پروت ئې د مغان په مېخانه کښې
او پــه ورځې مخ په لورې د محراب کړې (رحمان بابا)

په کوټه کښې د ناستې لوړ ځاے. د باشاهانو خلوت خانه.
یادابنت: "محراب" اصلاً د الې اسم دے.او هر کله چې د جماعت محراب هم شیطان سره د جنګ او د دښمنۍ کولو یوه اله ده ځکه ورته محراب وائي).

**محرر**:- (م+حر+رِر)(ع ، اس مف ، مذ ، موــه) لیکونکے ، لیکلو واله ، منشي ، کاتب (عربي کښې).

**محرر**:- (م+حر+رَر) (ع ، اس ، مذ ، ج-ان) لیکلے شوے ، تحریر شوے.

**محررات**:- (م+حر+ر+رات)(ع ، اس ، مو ، ج) د محرر جمع ده. لیکلې شوې څیزونه ، نوشتې ، تحریرات.

**محرري**:- (م+حر+ر+ري)(عپ ،اس،مو) د تحریر روزګار ، منشي توب.

**محرک**:- (م+حر+رک)(ع ، اس ، ج-ان / ین) حرکت ورکوؤنکے ، تحریک کوؤنکے ، راپاروؤنکے ، لمسوونکے.

**محرکات**:- (م+حر+ر+کا+ت) د "محرکه"، جمع ده.

**محرکه**:- (م+حر+ر+ک)(اس ، مو ، ج-کې) د "محرک"، تانیث دے.

**محرکین**:- (م+حر+ر+کي+ن)(ع،اس ، مذ ، ج) د "محرک"، (اس) جمع ده. حرکت ورکوؤنکي ، په حرکت کښې راوستونکي. راپورته کوؤنکے ، راپاوؤنکي.

**محرم**:- (م+حر+رم)(ع ، اس ، مع) د اسلامي کېلنډر (تقویم) وړومبنۍ میاشت ، د حسنېنو میاشت .د حسن ، حسېن میاشت . (د اسلام نه اګاهو د جاهلیت په زمانه کښې په دې میاشت کښې جنګ حرام وو.ځکه ددې میاشت نوم وګرځېدو.

**محرم**:- (مح+رم)(اس مف ، مذ ، موــه) هغه نارینه خپلوان چا سره چې نکاح جائز نۀ وي.یا پرده ترې ضروري نۀ وي.

محـرمانو اجازت موندلے نۀ دے
ګېډېر به ئې خبر کړل له دې سوده (خوشحال)

رازدار ، پېژندګلو ، اشنا ، واقف.

**محرم**:- (مح+رم)(ع ، اس ، صف ، مذ ، موــه)احرام تړونکے ، احرام تړلو واله.

**محرمانه**:- (مح+ر+ما+نه)(عف ، ترتف) د "محرم"، غونډې په رازدارانه انداز کښې.د خپلو غونډې. په راز کښې د ساتلو.راز سره تعلق لرونکے.

**محرمه**:-(مح+ر+مه) د "محرم"، تانیث دے.

**محرور**:- (مح+رو+ر)(ع ،صف،اسم ، مذ، موــه) ګرم ، ګرم مزاج واله.

**محروس**:- (مح+رو+س) (ع ، اس ، مف ، مذ ، موــه) په حراست کښې. په حفاظت کښې ، ماتحت

**محروسه**:- (مح+رو+سه) (عپ ، اس ، مو) د "محروس"، تانیث دے.

**محروق**:- (مح+رو+ق) (ع ، اس ، مف ، مذ ، موــه) سوځېدلے ، سوخته

**محروقات**:- (مح+رو+قا+ت) (ع ، اس ، ج) خشاک ، د بلولو څیزونه.

**محروم**:- (مح+رو+م) (ع ، اس ، مف ، مذ ، موــه) حرام کړے شوے. منع شوے. بې برخې، نظر انداز کړے شوے ، بې نوا ، پرېښودے شوے.

**محرومي**:- (مح+رو+مي) (عف ، تر ، اس ،مو) محروم پاتې کېدل ، محرومېدل ، بې نصیبه یا بې برخې پاتې کېدل.کوم څیز د لاسه وتل. د نظر انداز کېدلو حالت.د بې برخې کېدلو حالت.

**محرومیت**:- (مح+رو+مي+یت)(اوګورئ—محرومي).

**محزون**:- (مح+زو+ن)(ع ، صف ، مذ ، موــه) غم ځن ، غم وهلے،مغموم.

**محسن**:- (مح+سن)(ع ، اس ، صف ، مذ، موــه) احسان کوؤنکے ، ښېګړه کوؤنکے ، نېکي کوونکے ، ښۀ کار کوونکے.

**محسود**:- (مح+سو+د)(ع ، اس ، مف ، مذ ، موــه) هغه څوک چې حسد ورسره شوے وي. د پښتنو د یوې لوېې او مشهورې قبیلې نوم دے.

**محسوس**:- (مح+سو+س)(ع ، اس ، مف ، مذ ، موــه) هغه څۀ یا څیز چې احساس ئې شوے وي یا حِس شوے وي.هغه څیز چې د یو حس په ذریعه معلوم شوے وي.

**محسوسات**:- (مح+سو+سا+ت) د "محسوس"، جمع ده.

**محسوسول**:-(مح+سو+سه+ول)(مص) احساس کول.د حس په ذریعه معلومول.محاورتاً په کومه خبره په زړۀ کښې ، خفه کېدل ، په زړۀ بد لګېدل.

**محشر**:- (مح+شر)(ع ، اس ، مذ ، ج-ونه) د راغونډېدلو یا د جمع کېدلو ځاے.د قیامت ورځ. قیامت ، د حساب کتاب ورځ.

**محشي**:- (م+حش+شا)(ع ، صف) حاشیه شوے. هغه کتاب چې حاشیه پرې لیکلې شوې وي.

**محصن**:- (مح+صن) ع ، اس ، فا ، مذ ، ج-ان) هغه سړے چې ښځه لري ، وادۀ کړے سړے.

**محصنات**:- (مح+ص+نا+ت)(ع ، اس ، مو ، ج) د "محصنه"، جمع ده. د شتۀ مېړونو ښځې ، مېړۀ دارې ښځې،هغه ښځې چې خاوندان لري ،

پاکې او پرهېزګارې ښځې.پاک لمنې ښځې.

**محصن** :- (م+حِصْ+صِنْ)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) دېوال چاپېروونکے ، دکلي وغېر نه چاپېره قلا جوړوونکے، حفاظت کوونکے، محافظ ، داروغه، پاک لمنه سړے ، پاکباز سړے .هغه سړے چې د پاک لمنۍ دپاره وادۀ وکړي.

**محصنه** :- (م+حص+ص+نه)(ع ،صف، مو ، ج ـــ نې / ات) محفوظ شوې ښځه ، د شتۀ مېړۀ ښځه ، هغه ښځه چې د خاوند په وجه محفوظ شوې وي. پاک لمنه ښځه ، پاکبازه ښځه.

**محصور** :- (مح+صو+ر)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) په محاصره کښې . راحیصار شوے ، راګېر شوے ، راګېر ، بند کړے شوے .قلعه بند .په قلا کښې بند شوے.

**محصورین** :- (مح+صو+ري+ن) د محصور (اس) جمع ده . راګېر شوي خلق ، په قلا کښې قلابند شوي.

**محصول** :- (مح+صو+ل)(ع،اس ، مف ، مو، ج ـــ ونه / ات) حاصل کړے شوے ، وصول کړے شوے .هغه رقم وغېره چې د ټېکس په طور حاصلېږي د خراج رقم.ټېکس ، مالګذاري. چونګے ،فصل ، د زمکې فصل.

**محصولات** :- (مح+صو+لا+ت)(ع ، اس ، ج) د محصول جمع ده.

**محض** :- (مح+ض)(ع ، حرف) حرف ، فقط ، خالص.

**محضر** :- (مح+ضر)(ع ، اس ، مذ ،صف) د حاضرېدلو ځاے. هغه کاغذ چې د قاضي مهر پرې لګېدلے وي . هغه کاغذ چې ګڼو خلقو پرې د کومې مطالبې دپاره دستخطونه کړي وي.مطلق درخواست.

که دې قصد ، کینه حسد ورسره پرېوځي
پـــــه وژو د سید درست کا محضر زر (خوشحال)

**محظور** :- (مح+ظو+ر)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) حرام کړے شوے ، حرام ګرځولے شوے ، ممنوع ، حرام.

**محظورات** :- (مح+ظو+را+ت)(اس،مو،ج) د ,, محظوره ،، جمع ده .منع کړے شوي څیزونه ، ممنوعات.

حـــواس نـــۀ منع کوي له محظوراتو
خداے نه غزي د شیخ رسمي اساک ته (حافظ)

**محظوظ** :- (مح+ظو+ظ)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې خط ئې موندلے وي.مسروره شوے ، خوشحاله شوے ، لُطف اندوزه. (په پښتو کښې عموماً د دویمې ,,ظ،، زور سره وئیلے شي .) هغه څوک / څۀ چې خوند ئې اخستے وي.

**محفل** :- (مح+فل)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه / محافل) مجلس ، غونډه ، یو ځاے ناسته ، انجمن.

**محفل میلاد** :- (مح+ف+ل+مي+لاد)(عف ، تر ، اس ، مذ) د حضور پاک ص د پیداوښت د ورځې دستوره.

**محفوظ** :- (مح+فو+ظ)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) په حفاظت کښې، بچ.(د هر افت نه په امان ، ژغورلے ، اماني ، سلامت.

**محقق** :- (م+حق+قق)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) تحقیق شوے ، ثابت شوے ، مسلم ، منلے شوے .معلوم کړے شوے (محاورتاً).

**محقق** :- (م+حق+قِق)(ع ، اس ، صف ، ج ـــ ان / ین) تحقیق کوونکے ، څېړنه کوونکے ، تفتیش کوونکے .ډېر لوے عالم فاضل.

**محققه** :- (م+حق+ق+قه)(عپ ، تر،اس ،مو، ج ـــ انې) د محقق مؤنث.

**محک** :- (مَ+حک یا مِ+حَکْ)(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) زرکاڼے ، هغه کاڼے چې سرۀ زر پرې ومږلے شي او د دغو زرو کره کوټه پرې معلومولے شي. (دا لفظ ځینې خلق د میم زبر سره هم وائي).

**محکم** :- (مح+کم)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) مضبوط ، کلک ، پائیدار ، ددې مؤنث ,, محکمه ،، دے.

**محکمات** :- (مح+ک+ما+ت)(ع ، اس ، مو ، ج) د ,, محکمه ،، جمع ده . د قرآن پاک هغه آیتونه چې معنې ئې واضح او صفا دي.

**محکمول** :- (مح+ک+م+وُل)(مص) مضبوطول ، کلکول ، ټینګول.

**محکمــه** :- (م+ح+ک+م)(ع ، اس ، مـو ، ج ـــ کـې) د حکـم کولـو ځاے،عدالت ، دربار ، د حکومت یوه شعبه ، صیغه ، سررشته (خج په اخري ,, م ،، دے)

**محکمې** :- (مح+ک+مې) د ,, محکمه ،، جمع ده .(د په ,, م ،، اخري خج سره) مضبوط ،کلکې. (د په ,, ک ،، خج سره).

**محکوک** :- (مح+کو+ک)(ع+کو+ک) تراشلے شوے، توږلے شوے ، سپین کړے شوے. هغه غمے چې څۀ نقش پرې کنستلے شوے وي.

**محکوم** :- (مح+کو+م)(ع ، اس ، مف ، مذ ، ج ـــ ان) حکم ورکړے شوے ، د حکم لاندې، ماتحت ، غلام.

**محکومه** :- (مح+کو+مه)(عپ ، اس ، مو ، ج ـــ مې) د,, محکوم ،، مؤنث دے

**محکومیت** :- (مح+کو+مي+یت)(ع ، اس ، مذ) د حکم تر لاندې کېدلو حالت ، ماتحتي ، غلامي.

**محل** :- (م+حل)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ات) ځاے ، ټیکاؤنه ،ماڼۍ ، لوے کور ، ځاے ، مکان.

چې محل د لرګي دارالقرار نۀ وو
په حکمت ئې را ایستو دارالفنا ته (حافظ)

موقع ، رخت (په دې معنٰی کښې عموماً ,,مال، تلفظ کېږي).

**محلات** :- (م+حل+لا+ت)(ع ، اس ، مو ، ج) د ,, محله ،، جمع ده . (و ـــ محلت)

**محلت** :- (مح+لت)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) محله،چم ،کندے هم ورته وائي.

**محلل** :- (م+حل+لل)(اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) حل شوے،محلول،ګډ کړے شوے ، ویلې شوے.

**محلل** :- (م+حل+لل)(اس ، فا ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) حل کوونکے،کوم څیز په مائع کښې ورګډوونکے.

**محلوج** :- (مح+لو+ج)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) مالوچ ، پاغونده. وهلے شوے مالوچ ، ډانډت شوے مالوچ.

**محلول** :- (مح+لو+ل)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) په مائع کښې حل شوے څیز .کوم دارو وغېره چې په اوبو یا په بل کوم مائع څیز کښې ورګډ کړے شوي وي.چې دوه یا زیات څیزونه سره ګډ شي او یو نه یو په کښې بهېدونکے وي.

**محله** :- (م+حل+له)(ع ، تر ،اس ، مو ، ج ـــ لې)(و) محلت د ,, م ،، په ,,پېښ،، سره ئې معنٰی ده .د کوز بدلو ځاے .د کډې اړولو ځاے ، پړاؤ.

**محمد** :- (م+حمْ+مَد)(اس ، مع)د اخري نبي او رسول ص نوم دے . پېغمبر ص اسلام

**محمدزئ** :- (م+حم+مد+زئ)(اس ، مع) د اسماعیل زئیو څانګه ده . اسماعیل زئ ، علي زئ ، سنزر خېل) کاکړ دي.

**محمدي** :- (م+حم+م+دي)(ع ، صف) محمد ص سره تعلق یا نسبت لرونکے / نکې. د محمد ص د دین منونکے مسلمان. د پښتو د یو مشهور بزرګ شاعر تخلص.(صاحبزاده محمدي).

**محمل** :- (مح+مل)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) کجاوه یا کیجاوه. ډولۍ.

**محمود** :-(م+ح+مو+د)(ع ، اس ، مف ، مذ ، موــه) هغه چې حمد يـا صفت ئې شوے وي.د صفت وړ.د غزني مشهور غازي بادشاه سلطان محمود غزنوي.

که اياز شوې بندګۍ کښې
نـور به ناز کړې په محمود (رحمان بابا)

**محمول** :-(مح+مو+ل)(ع ،اس ، مف ، مذ ، مو ــه)اوچت کړے شوے ، اخستلے شوے، بارکړے شوے / شوي. ګڼلے شوے / ې / ي (د مطلب په معنٰى کښې).

**محن** :- (م+حن)(ع ، اس ، ج) د ,, محنت ،، جمع ده.

**محنت** :-(مح+نت)(ع ، اس ، مذ ، جـــونه / لحن) هڅه ، کوښښ ، زيار ، مزدوري ، د روزۍ ګټلو دپاره سخت کار.

**محنــت کښ** :- (مــح+نــت+کښ)(عف،تر،اس،صـف،مذ،ج ـان) محنـت کوونکے، مزدور ، مزدورکار.

**محنتي** :- (مح+ن+تي)(عف ، تر ، صف) محنت کښ ، محنت کوؤنکے ، مشقت کوؤنکے ، په کوم کار کښې ځان کړوؤنکے. ډېر کار کوؤنکے.

**محـو** :- (مـح+و)(ع ، صف) زائـل،ختم، لـرې شـوے ، ورک شـوے ، وران کړے شوے /ې/ي.مشغول ، په فکر يا شغل کښې غرق.

**محور** :- (مح+ور)(ع ، اس ، مذ ، جـــونه) دُره.هغه مېخ، مـوړے او سيخ يا لرګے چې پايـه په کښې چـورلي. هغـه خط چې تـرې سيارې چاپېره ګرځي.

**محوري** :- (مح+و+ري)(عف ، تر ، صف),, محور ،، سره تعلق لرونکے.د جرمني نازي او د اټلي فسطائي حکومتونه چې په دويم لوے جنګ کښې ئې برخه اخستې وه.

**ـــ ګردش** :- د زمکې هغه چورليدنه کومه چې دا د يو فرضي خط نه / څخه چاپېره کوي.(دکاليزګردش په مقابله کښې).

**محولـه** :- (م+حو+و+لـه) د ,, محـول ،، تانيث دے. هغـه چې حوالـه ئې ورکړے شوې وي.

**محويـت** :- (مـح+وي+يـت)(اس ، مـذ) محـو کېـدل ، پـه کـوم کـار کښـې بوختېدل.په خيال يا فکر وغېره کښې ورکېدل.

**محير** :- (م+حي+ير)(ع ،اس، صف ، مذ،موــه) حيرانوونکے / کې / کي.

**محيط** :-(م+حي+ط)(ع ، اس ، مـذ ، جــونه) د دائرې بهرنۍ اخري خط. هغـه الفاظ ، ليـک يـا کرښـې او حدونـه چې څـۀ ځيـز يـا ځـاے يـا بحث رانغاړي ، راګېروي يا راشاملوي.

**محيطي** :- (م+حي+طي)(عف ، تر ، صف) محيط سره تعلق لرؤنکے.

**محيل** :-(م+حي+ل)(ع ، صف ، مذ ، موــه) بهانېګرکے،حيله ګر ، فريبي ، مکار ، چالاک.

**مخ** :- (مخ)(اس ، مذ ، جـــونه) څهره ، څېره (د حېوان خصوصاً د انسان هغه برخه چې په کښې تندے ، سترګې، پوزه ، خولۀ او زنه راغونډوي ، د نـورو ځيـز څېرمـه اړخ تـه هـم مـخ وائـي) بشـره ، شـکل ، صـورت چې موشاده هم ورتـه وائي. د شا د ضد پـه توګـه هم وئيلے شي. (محاورتاً) لحاظ ، خاطر يا عزت

**مخ** :-(مخ)(اس ، مذ ، جـــونه) د اوبو سطح.د کاغذ د پاڼې يو طرف ، مخه ، طرف ، لورے ، لحاظ ، پاس ،عزت ، وقار.

**مخ** :- (مخ)(ع ، اس ، مذ) مازغۀ / ماغزۀ ، دماغ.

**ـــ نغاړل** :- (نغښتل) مخ په پړده کښې پټول ، مخ نۀ ښکاره کول.

ښاپېرۍ چې ليدے نشي سبب دادے
مـخ سـتا لـه شـرمه نـغاړي په جاب (رحمان بابا)

**ـــ نه اړول ، د څۀ نه** :- کوم ځيز ته نۀ شا کول.انکار نۀ کول هرو مرو قبلول.

**مخـارج** :- (م+خـا+رج)(ع ، اس ، ج) د ,, مخرج ،، جمع ده .د خـارج کېـدلو ځايونه ، باهر ته د وتلو ځايونه.خرڅونه.اخراجات.

**مخــازن** :- (م+خـا+زن)(ع ، اس ، ج) د ,, مخـزن ،، جمـع ده .مخزنونـه ، خزانې ، خزينې ، دفينې.

**مخاصمه** :- (م+خا+صي+مـه)(ع ،اس ، مو ، جــمې / ات) جنګ، جګړه ، د ښمنې ،مخالفت ، ميرڅې.

**مخاصمت** :- (م+خا+ص+مت)(وـــ مخاصمه).

**مخاصمات** :- (م+خا+ص+ما +ت)د ,, مخاصمه ، جمع ده.

**مخاطب** :- (م+خا+طب)(ع ، اس ، مذ ، جــان / ين) هغـه کس چې چا سره خبرې کېږي يا چې چاته خطاب کولے شي. (ګرېمر) هغه کس چې چا سره خبرې کولے شي.حاضر.

**مخاطب** :- (م+خا+طب)(ع ، اس ، مذ ، جــان / ين) نورو تـه خبرې کوؤنکے ، خطاب کوؤنکے ، تقرير کوؤنکے.

**مخاطي** :- (م+خا+طي)(ع ، اس ، مذ) د بلغم يو قسم دے .چې د پوزې د ڼړ په شان وي. خطاکوؤنکے ، خطاکار.

**مخافت** :-(م+خا+فت)(ع ، اس ، مذ ، جــونه / ات) خوف ، ويره ، خطره ، انديښه

**مخافات** :- (م+خا+فا+ت)(ع ، اس ، ج) د ,, مخافت ،، جمع ده.

**مخالطت** :- (م+خا+ل+طت)(ع ، اس ، مذ ، جـــونه) خلط ملط کېدل ، ګډ وډ کېدنه ، اختلاط ، ملاوېدل راملاوېدل.دوستي ، اتحاد.

**مخـالف** :-(م+خـا+لـف)(ع ، اس ، مف ، مذ ، جــان / يـن) دښـمن ، بـدخواه ، برعکس ، په بل رنګ ، اُلټه.(موسيقي) د مقام عراق د يوې ځانګې نوم دے .

**مخالفت** :- (م+خا+ل+فت)(ع ، اس ، مذ ، جـــونه) دښمني ، بدخواهي ، اُلټه کېدل ، اوړېدل ،مخ اړول ، روګرداني.

**مخالفه** :- (م+خا+ل+فه) د ,, مخالف ،، مؤنث دے.

**مخامخ** :- (م+خا+مخ) مخ په مخ ، په وړاندې.

**مخبـر** :- (مـخ+بـر)(ع ، اس ، صف ، مـذ ، مـوـــه) خبـر ورکـوونکے ، جاسوس.

**مخبري** :- (مخ+ب+ري)(عپ ، تر،اس ، مو) جاسوسي،د خبر ورکولو کار.

**مخبوط** :- (مخ+بو+ط)(ع،اسم،صف،مذ) لېونے، ديوانه،پاګل ، سودائي.

**مختص** :-(مـخ+تـص)(ع،اس،مذ،موــه) خاص کړے شوے ، مخصـوص شوے ، خاص ګرځوؤلے شوے ، غوره کړے شوے ، منتخب ، چوڼ کړے شوے.

**مختصر** :- (مخ+ت+صر)(ع،اس ، صف، مـذ، مـو ــه) لنډ ، کوتـاه ، وړوکے.

**مختصراً** :- (مخ+ت+ص+راً)(ع ، تف) اختصار سره ، په لنډ ډول.

**مختلط** :- (مخ+ت+لط)(ع ، اس ، صف ، مذ ،مو ــه) خلط ملط ، ګډ وډ.

**مختلط** :-(مخ+ت+لط)(ع،اس ، صف ،مذ ،موـــه) خلط ملط کوؤنکے ، ګډ وډ کوؤنکے ، نامعلومه ، ګمنامه ، (شجره نسب وغېره).

**مختلف** :-(مخ+ت+لف)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ــه) بـل شـان / رنګ ، بېل ، جدا.

**مختلــف الاضـــلاع** :- (مـــخ+ت+ل+فـــل+اض+لا+ع)(عـــف ، اس) د جيومېټرۍ هغه څلور ګوټيځ شکل چې بازوګان ئې سره برابر نۀ وي.

**مخسره** :-(مـخ+س+ره)(اس ، مو ، جــرې) د ,, مسـخره ،، اړولے شکل دے.د جتهانو تلفظ دے.

**مخسري** :- (مخ + س + ري)(پ تر ، صف) د مسخره جمع ده.

**مخښوکه** :- (مخ + ښو + که)(ا) (م + خو + که)(ب) (م + ښو + که) (اسم،مو) د مارغۀ خولۀ چې اوږده او د هډوکي نه جوړه وي.

**مخصوص** :- (مخ + صو + ص)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) خاص ، خاص کړے شوے.

**مخفف** :- (م + خف + فف)(ع ، مف ، مذ ، مو ـ ه) تخفيف شوے. هغه چې په کښې څۀ کمے راوستے شوے وي. کم کړے شوے ، لږ کړے شوے . مختصر کړے شوے.

**مخفي** :- (مخ + في)(ع ، صف) خفيه ، پټ ، پنا تخلص ، د يو نوميال پښتون ، د ازادئ د تحريک سرلښکر او د پښتون د تعليم په ارمان مړ ښۀ ليکوال ، شاعر او اديب ، عالم فضل محمود (مخفي).

**مخکښې** :- (مخ + ک + ښې)(اسم صفت) په وړاندې ، پخوا ، اګاهو.

**مخکنے** :- (مخ + ک + نے) يا (مخ + کې + نے) (اسم ، صف ، مذ ، ج ـ نې) هغه چې مخ کښې دے / وو / وي ، وړاندينے ، پخوانے.

**مخکنۍ** :- (مخ + کَ / کِ + نۍ) د مخکنے مؤنث دے.

**مخل** :- (م + خل)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) خلل اچوونکے ، خند اچوونکے ، رخنه ګر ، مداخلت کوونکے ، په مېنځ کښې راپرېوتونکے.

**مخلب** :- (مخ + لب)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د مرغو مرغانو منښوکه.

اوسو په بل اور ققنس بلبل سينه پاره شۀ
زاغ پليد مخلب ګرځي فارغ زړۀ له بلباله (حافظ)

**مخلص** :- مخ + لص)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) د خلاصي ځاے ، د پناه ځاے ، د تېښتې ځاے.

**مخلص** :- (مخ + لص)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) اخلاص،اخلاص مند ، رښتونے ، صادق. رېښتونے دوست ، اخلاص مند دوست.

**مخلصانه** :- (مخ + ل + صا + نه)(عف ، تر ، تف) په اخلاص سره ، د اخلاص په توګه ، بې غرضه.

**مخلوط** :- (مخ + لو + ط)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) خلط ملط ، ګډ وډ ، يو ځاے (مختلف څيزونه يا جنسونه).

**مخلوع** :- (مخ + لو + ع)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـ ه) خلع کړے شوے ، جدا کړے شوے ، بېل کړے شوے . د تخت نه کوز کړے شوے ، معزول کړے شوے.

**مخلوق** :- (مخ + لو + ق)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ات) خلق کړے شوے / شوي ، پيدا کړے شوي / شوي ، پېدا اوښت. خلق ، خلقت ، عالم.

**مخلوقات** :- (مخ + لو + قا + ت)(ع ، اس ، ج) د ,, مخلوق ،، جمع ده.

**مخلّے** :- (م + خل + لا)(اس ، مف) خالي کړے شوے . ازاد کړے شوے ، پرېښودے شوے.

**مخمخے** :- (مخ + م + خے)(اسم ، صف ، فعل) چاپلوس ، چاپلوسي.

**مخمس** :- (م + خم + مس)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ات) د جيومېټرۍ هغه شکل چې پينځۀ ضلعې يا زاويې لري. پينځ ګوټيځ شکل. (شعر) د نظم هغه قسم. چې هر يو بند په کښې د پينځو مصرعو وي.

**مخمسه** :- (مخ + م + س)(ع ، اس ، مو ، مذ) يو مسئله ، د مور ، خور يا د نيکۀ په حقله د جائيداد د تقسيم په باره کښې چې په کښې د پينځو اصحابو يعني حضرت علي رض ، حضرت عثمان رض ، ابن سعود رض ، زيد رض او د ابن عباس رض په کښې اختلاف وو. (جامع اللغات).

**مخمصه** :- (مخ + م + صه)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ صې) جګړه ، لانجه ، شخړه ، هغه غم چې زړۀ په کښې پرېشانه وي. ګرانه ، داسې خبره چې حل يا فيصله ئې ګرانه وي.

**مخمل** :- (مخ + مل)(ع ، اس ، مذ) يو مشهور پوست او مهين ټوکے ، بخمل ، د سور رنګ يو ډېر نرم ګل.

**مخملي** :- (مخ + م + لي)(عف ، تر ، صف) د بخمل په شان ، پوست نرم ، بخملي. د بخملو نه جوړ. د بخملو نه رغ شوے.

**مخمور** :- (مخ + مو + ر)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې نشه ئې کړې وي. نشه کښې.

**مخنث** :- (م + خن + نث)(ع ، اس ، مذ) هيجړا ، نامرد.

مرد چې بادر نۀ وي په وسله به بادر نشي
ځلــه مخنث د مــړنو په هتيار بلو شي (حافظ)

**مخنوق** :- (مخ + نو + ق)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې مرۍ ئې خفه کړے شوې وي.

**مخور** :- (م + خ + ور)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) مخ لرونکے ، مخوريځ . هغه چې لحاظ پاس ئې کولے شي. عزت دار. رعب دار.

**مخوکه** :- (م + خو + که)(و ـــ مخښوکه).

**مخول** :- (م + خو + ل)(اس،مذ،ج ـــ ونه) ټوقه،مذاق،ملنډه.

**مخومخ** :- (م + خو + مخ )(صف ، مذ ،مو ـ ه) د ,, مخامخ ،، بدل شکل دے.

**مخه** :- (م + خه) د ,, مخ ،، يو اشتقاقي صورت دے چې د اسم او اسم صفت او جمعې په توګه راځي.

**مخۍ** :- (م + خۍ)(اس ، مو) هغه لور خور چې په بدله کښې چاته وادۀ کړے شي. په بدلون کښې وادۀ شوې جينۍ سياله ، برابره ، همسره ، يو شانې.

**مخے** :- (م + خے)(اس ، مذ ، ج ـــ خي) برابر ، همسر ، سارے ، نظير.

ډېر صفت د ښاپيريو اورېدے شي
ولې ستا د مخ څوک نۀ وينم مخے (خوشحال)

(خج په ,, خے ،، باندې دے).

**مخير** :- (م + خي + ير)(ع ، اس / صف ، مذ ، مو ـــ ه)اختيار لرونکے ، اختيار من ، مختار . خيرات کوؤنکے ، د نيکۍ او ښېګړې په کارونو کښې پېسه لګوونکے ، فېض رسان ، سخي ، فياض.

**مخيله** :- (م + خي + ي + له)(ع ، اس ، مو) د تصور کولو يا د خيال کولو قوت متصوره قوت.

**مد** :- (مد + د)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ات) کشش ، راښکنه ، ختنه ، خوورېدل غوړول. د الف په راښکلو سره په اوږد ډول د لوستلو علامت يعني ( ~ ) داسې الف ته يا بل حرف ته ممدوده وئيلې شي. د سېوږمۍ د کشش له کبله د سمندر د اوبو د مخ اوچتېدنه (د جذر په مقابله کښې) اوږدوالے. محکمه ، سررشته. سرخط ، عنوان ، سرنامه ، هغه کرښه چې د حساب د کوم رقم دپاسه راښکلے شي.

**مد** :- (مَدْ)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د يوې پيمانې نوم دے چې غله وغېره پرې اندازه کولے شي او د دوؤ رطلو برابره وي.

**ـــ مقابل** :- (ـــ (د) + مُ + قا + ب + ل)(عف ، تر ، اس ، مذ) د مقابلې سړے ، د برابرۍ دعوٰی لرونکے ، حريف.

**مد** :- (مَدْ + د)(ع ، فعل ، مذ ، ج ، نه / ات) خوورول ، غوړول ، هوارول ، سمول

**مد** :- (مد + د)(ع ، فعل) اوږدېدنه ، درازي . عموماً د درخواستونو او خطونو په سرنامو کښې دعائيه القابو کښې راځي. لکه : مدظله.

**مُد** :- (مُد)(ع ، اس ، مذ) دستور ، فېشن ، عادت.

**مداح** :- (مد + دا + ح)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) مدح کوؤنکے ، تعريف کوؤنکے ، ثناخوان.

**مداخلت** :- (م + دا + خ + لت) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) دخل ورکول ، په کوم کار کښې ګوتې وهل. قبضه ، تصرف.

**مدار** :- (م + دا + ر) (اس ، مذ ، ج ــــ ونه / ات) خاطر ، تواضع ، عزت ، درناوے (د مدارات مخفف دے چې په فارسي کښې ترې ,, مدارا ،، جوړ شوے دے).

**مدار** :- (م + دا + ر) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه / ات) د ستورو او سيارو د ګردش لاره. هغه مېخ وغېره چې کوم څيز ترې چاپېره چورلي. لکه : چوړ ، دره ، چورلندے ، (لټو) وغېره. دائره ، ګېره. مجازاً هغه چې بل کوم څيز پرې اړه لري. يا پرې را ايسار ، ولاړ يا ټينګ وي يا پرې اړانه وي.

**مدارج** :- (م + دا + رج) (ع ، اس ، مذ) د ,, مدرج ،، جمع ده. درجې ، مرتبې ، منصبونه ، مرحلې.

**مدارس** :- (م + دا + رس) (ع ، اس ، مذ ، ج) د ,, مدرسه ،، جمع ده. مدرسې ، سکولونه ، درس ګاهونه.

**مداري** :- (م + دا + ري) (اس ، مذ ، ج ــــ ان) شعبده باز ، مختلف قسم تماشې ښوؤنکے. چالاک سړے ، دلاس د صفايۍ تماشې ښوؤنکے. چل باز.

**مدافع** :- (م + دا + فع) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) دفع کوؤنکے ، لرې کوؤنکے ، بچ کوؤنکے.

**مدافعت** :- (م + دا + ف + عت) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) دفع کونه ، د لرې کولو عمل يا کوښښ ، بچ کونه ، دفاع ، حفاظت ساتنه ، ژغورنه.

**مدافعه** :- (م + دا + فع) (ع ، اس ، مو ، ج ــ عې) (و ــ مدافعت).

**مدام** :- (م + دا + م) (ع ، اسم / اسم صف / مذ) همېشه ، متواتر ، مسلسل ، تل ، شراب.

د رواج او رسم عمر مدام نۀ وي
لکه عمر چې مدام دے د اخلاص (رحمان بابا)
جام په مدام پُر کړه دانوبت به مدام نۀ وي
نن درته پرانستې فاتح درد خمخانو دے (حافظ)

**مدامي** :- (م + دا + مي) (اسم صف ، اس ظر) همېشه ، مستقل ، تل پاتې کېدونکے / کې. دوامي.

**مداوا** :- (م + دا + وا).

**مداوات** :- (م + دا + وا + ت) (ع ، اس ، مو ، ج ــــ وې / ات) دارو درمل ، علاج (اصلاً ,, مداوا ،، د ,, مداوات ،، مخفف دے).

دقضارد به له مقضٰی عليه هېڅوک ونۀ کا
کـه دانايان د کـل جهان په مداوات راشي (حافظ)

**مدائن** :- (م + دا + ين) (ع ، اس ، مذ ، ج) د ,, مدينه ،، جمع ده. ښهرونه (مع) د عراق د يو پخواني ښهر نوم ، په سوات کښې د يو کلي نوم. چې عموماً ورته ,, مدين ،، وائي چې پخوانے نوم ئې چوړ ړې وۀ.

**مدبر** :- (مد + بر) (ع ، مذ ، ج ــــ ان) بدنصيب ، بدبخته ، کم ازلے ، شاکوؤنکے ، په شا ګرځېدونکے ، وروستو کېدونکے.

**مدبر** :- (م + دب + بر) (ع ، اس ، مذ ج ــ ان / ين) تدبير کوؤنکے ، د تدبير خاوند ، هوښيار ، پوهان ، دانشمند ، صلاح کار ، مشير.

**مدبرانه** :- (م + دب + را + نه) (عف ، تر ، تف) د مدبر په شان ، د ښۀ تدبير په طور ، عقلمندانه ، د ښۀ منتظم په شان.

**مدت** :- (مد + دت) (ع ، اسم زمان ــ صف) موده ، ميعاد ، مهلت ، وخت ، زمانه.

**مدح** :- (م + دح) (ع ، اس ، مو ، ج ــــ حې) تعريف ، صفت ، ستائينه ، ستائل.

**مدحت** :- (مد + حت) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) مدح کول ، صفت بيانول ، تعريف بيانول ، ستائينه کول ، ستائل.

**مدحې** :- (مد + حې) (اس ، مو ، ج) د ,, مدح ،، جمع ده. صفتونه ، تعريفونه.

**مدحيه** :- (مد + حي + يه) (صف) مدح يا مدحې سره متعلق. هغه وينا يا نظم چې په کښې د چا تعريف شوے وي.

**مدخل** :- (مد + خل) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه / مداخل) د داخلېدلو ځاے ، د ورننه وتلو ځاے ، محاورتاً امدني ، امدن ، ګټه.

**مدخول** :- (مد + خو + ل) (ع ، اس ، مف ، مذ ، ج ــ ان) داخل شوے ، ورننوتلے ، دننه تلے.

**مدخوله** :- (مد + خو + له) (ع ، اس ، مو ، ج ــ لې) د ,, مدخول ،، تانيث دے. داخله شوې. هغه ښځه چې کوروالے ورسره شوے وي. هغه ښځه چې په کور کښې اچولے شوې وي. ساتلې شوې ښځه.

**مدد** :- (م + دد) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) مرسته ، کومک ، لاس کول ، رسد ، خوراک ، کار کوؤنکي مزدوران.

**مدر** :- (م + در) (ع ، اس ، مذ) لوټه ، غونډه زمکه ، د زمکې مرکز هم ترې مراد اخستے شي.

**مدر** :- (م + در) (ع ، اس ، صف ، ج ــ ات) جاري کوونکے ، متيازې راوستونکے ، (څيز يا دوائي) (اصلاً : ددې لفظ معنٰی د پيو / شودو د جاري کوؤنکې ، حرکت ورکوؤنکې يا د هغې ياد ده چې د بارانونو وريځې راولي).

**مدرات** :- (م + در + را + ت) (ع ، اس ، ج) د ,, مدر ،، جمع ده. هغه داروګان چې متيازې راولي.

**مدرار** :- (مد + را + ر) (ع ، صف ، مذ ، مو ــ ه) ډېره ورېدونکې وريځ ، باران.

**مدرج** :- (مد + رج) د ,, مدارج ،، واحد دے. عموماً د جمع په شکل کښې استعمالېږي. (و ــــ مدارج).

**مدرس** :- (م + در + رس) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ان / ين) درس ورکوؤنکے ، استاد ، سبق ښودونکے ، معلم.

**مدرسه** :- (مد + ر + سه) (ع ، اس ، مو ، ج ــــ سې / مدارس) هغه ځاے چېرته چې درس ورکولے شي. د درس ځاے ، مکتب ، سکول.

**مدرسي** :- (م + در + ر + سي) (عف ، تر ، اس ، مو) د تدريس يا درس ورکولو پيشه يا کار. استاذي ، معلمي.

**مدرع** :- (م + در + رع) (ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) زغره وراغوستونکے ، مرئ خفه کوؤنکے ، تېزندئ کوؤنکے. بيان کوؤنکے ، ويونکے.

**مدرک** :- (مد + رک) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه) هغه څيز چې درک ئې لګېدلے وي. په پوهه کښې راغلے ، په عقل کښې راغلے.

**مدرک** :- (مد + رک) (ع ، صف ، مو ــــ ه) درک لګوؤنکے ، پوهېدونکے ، مطلب ته رسېدونکے.

**مدرکه** :- (مد + ر + که) د ,, مدرک ،، مؤنث دے.

**مدعا** :- (مد + د + عا) (ع ، اس ، مو ، ج ــ ګانې / وې) مطلب ، غرض ، مقصود ، غوښته ، خواهش ، ارزو.

**مدعو** :- (مد + عو) (ع ، اس ، مف) هغه چې دعوت ورکړے شوے وي. بللے شوے. مبلمه کړے شوے.

**مدعي** :- (مد + د عي) (ع ، ف ، مذ ، ج) دعوٰی کوونکے.

**مدعي** :- (مد + د + عي) (اس ، مذ ، ج ــ ان) دعوٰی کوؤنکے ، دعوېدار ، مستغيث ، رقيب ، حريف ، ښمن ، مرڅمن.

خوار هغه چې دغليم په نغوته درومي
مـدعي غليم د نېکو نصيحت کا (خوشحال)

**مدعیه** :-(مد + د + عي + یه) د ,, مدعي ،، مؤنث دے۔

**مدغم** :- (مد + غم)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) پیوست کړے ، یو ځاے کړے۔ هغه حرف (تورے) چې د شد په ذریعه بل همدغه شان بل حرف (توري) سره یو ځاے شوے وي۔ (په دې کښې د یو جنس دوه توري یو ځاے راشي ۔نو صرف یو تورے ولیکلے شي ۔او د شد حرکت ورله ورکړے شي۔لکه حمام چې په اصل کښې حم + مام وو)۔

**مدفن** :- (مد + فن)( ع ، اس ، ظ ) د دفن کېدلو ځاے ، د ښخېدلو ځاے ، قبر ، مزار ، هدیره۔

**مدفوع** :- (مد + فو + ع)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) دفع کړے شوے ، لرې کړے شوے ۔غُل۔

**مدفوعه** :- (مد + فو + عه) د ,, مدفوع ،، مؤنث دے۔

**مدفون** :- (مد + فو + ن)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) مدفون کړے شوے ، ښخ کړے شوے ، د خاورو لاندې کړے شوے ۔محاورتاً پټ ، پنا۔

**مدقق** :- (م + دق + قق)(ع ، اسم ، فاعل ، مذ) ډېر په غور سره یا ژور نظر سره کتل۔نکته سنج ، د خبرې یا معاملې تل ته رسېدونکے۔

**مدقق** :- (م + دق + قق)(ع ، اسم ، مفعول ، مذ) پرېکړے شوے ، کوتره کړے شوے قیمه کړے شوے ۔هغه څۀ چې په تحقیق ثابت کړے شوي وي۔

**مدقوق** :- (مد+قو+ق)(ع ، صف ، مذ ،مو ــ ه) د ,, دق ،، ناروغه ، نري رنځے ۔ هغه رنځور چې په نري رنځ اخته وي۔

**مدک** :- (م + دک)(اس ، مذ) یو قسم نشئیز څیز دے ۔چې د تمباکو په شان چیلم کښې څښکلے شي ۔(د افیم او پان مرکب چې اوچ کړے شي او ګولۍ ترې جوړې کړے شي۔بیا ئې په چیلم کښې څښکي)۔

**مدکي** :- (م + د + کي)(هـ ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) د مدکو نشه کوؤنکے۔( و ــــ مدک)۔

**مدلل** :- (م + دل + لل)(ع ، اس مف ، مذ ، مو ــــ ه) په دلیل ولاړ ، په دلیل سره ثابت ، دلیل لرونکے۔

**مدلول** :- (مد + لو + ل)( ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه) په دلیل / دلائلو ثابت کړے شوے۔هغه چې دلالت پرې شوے وي۔

**مدن** :- (م + دن)(ع ، اس ، ج) د ,, مدینه ،، جمع ده۔مدینې ، ښهرونه۔

**مدني** :- (م + د + ني)(ع تر ، صف) مدینې منورې سره تعلق لرونکے ۔د مدینې منورې اوسېدونکے۔ دښهر اوسېدونکے۔د کلیوال متضاد دے۔

**مدنیت** :- (م + د + ني + یت)(ع ، اس ، مذ) ښهري ژوند ژواک ، د ښهر ژوند او دود سره تعلق لرونکے انداز۔ښهري توب۔

**مدوجزر** :- (مد + دو + ج + زر)(عف ، تر ، اس ، مذ) د سمندر د اوبو مخ اوچتېدل او غورځېدل۔کوم چې د سپوږمۍ د راکښون په سوب کېږي۔

**مدون** :- (م + دو + ون)(ع ، اس مف ، مذ ، مو ــــ ه) جمع کړے شوے ، مرتب کړے شوے ، کتابي شکل ورکړے شوے۔

**مدون** :- (م + دو + ون)(ع ،اس ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) تدوین کوؤنکے ، ترتیب ورکوؤنکے مرتب کوؤنکے ، جمع کوؤنکے۔

**مدهوش** :- (مد + هو + ش)(صف ، مذ ، مو ــــ ه) په نشه کښې د ځانه بې خبر ، بدمست ، بیهوښه ، بې سُده ۔ محاورتاً حېرانه ، په حیرت کښې وارخطا ۔اصل معنا ئې اولنۍ ده۔خو عام طور سره صرف په دوېمه معنا کښې استعمالېږي۔

**مدهوشي** :- (مد + هو + شي)(ف تر ، اس ، مو) ویره ، وارخطایي ،حیراني۔

**مدے** :- (پ ، اسم) مدے بابا ، یو ولي الله ، چې د مردان د ضلعې جلاله نومې کلي کښې ښخ دے۔

اے مدے د مېړے رنده
د هر چـــا په زړۀ پسنده (حافظ)

**مدیح** :- (م + دي + ح)(ع ، اس ، ج) تعریف ، صفت۔

**مدیحه** :-(م + دي + حه)(ع ، اس ، مو ، ج ــــ حې / مدائح)(د مدیح تانیث دے۔مدحه ، تعریف ، صفت۔

**مدید** :- (م + دي + د)(ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) خوور ، غځېدلے ۔اوږد ، دراز ، دنګ ، فراخه ، وسیع ، د شاعرۍ د یو بحر نوم دے چې په کښې ,, فاعلاتن فاعلن ،، ځلور ځله راځي۔یعني اوږد بحر۔

په مدید مېدان به ودرېږي درګاه ته
د عـــاجزو امتیانو ســـاتندویه (حافظ)

**مــدیر** :- (م + دي + ر)(ع ، اس مـذ ، ج ـــ ان ، مـو ـــ ه) چلـوونکے ،دور ورکوونکے ، د اخبار یا رساله / مجله چلوونکے یا ایډیټر ، د محکمې یا اداري ډائرېکټر۔

**مدیره** :- (م + دي + ره)(اس ، مو ، ج ــ رې / انې) د ,, مدیر ،، مؤنث دے۔

**مدیریت** :- (م + دي + ري + یت)( ع ، اس ، مذ) د مدیر کار کول ، مدیري ، د یوې اداري چلونه ، یا انتظام کونه ، ډائرېکټري ، پرنسپلي۔

**مدین** :- (مد + ین)(ع ، اسم ، مذ) د مصر نه اتۀ منزله فاصله باندې د دریائے مغرب په غاړه یو ښار دے چېرته چې به پیغمبر حضرت شعیب[۴] اوسېدلو۔په حجاز کښې یو ښار۔د سوات په ضلع کښې د یو ښائسته او ښکلي ځاے نوم دے۔ اوګوره مدائن۔

مخ ئې سم ونیوۀ سیمې د مدین ته
د نصیب اوبو ته تیر تل د ساند شي (حافظ)

**مدینه** :- (م + دي + نه)(ع ، اس ، مو ، ج ــ نې) ښهر ، ښهریه۔

**مدینه** : (م + دي + نَ)(اس ، مع) د عربو د ملک مشهور ښهر چې په کښې د حضور پاک [ص] روضه ده ۔اصل نوم ئې یثرب وروستو په ,, مدینة النبی[ص] ،، نوم مشهور شو۔(عموماً ,, مدینه منوره ،، بللے شي)۔

**مډل** :- (م + ډل) مبنځ واله،درمیانه هغه سکول چې تر اتم جماعت پورې ورکښې سبق وئیلے شي۔

**مډوائف** :- (مډ + وا + یف)(انګ ، تر اس ، مو) دایي ، قابله ، هغه ښځه چې د بچې زېږوُلو په وخت د مور لاس خدمت کوي۔

**مذاق** :- (م + ذا + ق)(ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) خولۀ کښې هغه ځاے چې څۀ پرې ښکلے شي ۔ ذائقه ، خون ، مزه ، خوش طبیعت ، رغبت ، ټوقه ، خندا ، ګپ ، ټوقې ټقالې ۔

**مذاقاً** :- (م + ذا + قاً)(تف) د مذاق په توګه ، د ټوقې یا ګپ په توګه۔

**مذاقیه** :- (م+ ذا + قي + یه)(عف تر ، اس ، مو ج ــ یې) د خندا ، ټوقې ، یا ګپ شپ په توګه ، مذاق یا ټوقې ته منسوب خبره / څیز/ حرکت۔

**مذاکره** :- (م + ذا + ک/کَ + ر)(ع ، اس ، مو ، ج ــــ رې / ات) سره خبرې یا د څۀ ذکر کول۔سره خبرې اترې۔ بحث۔

**مــذاکرات** :- (م + ذا + ک + را + ت)(ع ، اس ، ج) د عربــۍ پــه قاعــده د ,, مذاکره ،، جمع ده۔

**مذاکرې** :- (م + ذا + کَ/ک + رې) د پښتو په قاعده د ,, مذاکره ،، جمع ده۔

**مـذاهب** :- (م + ذا + هِب)(ع ،اس ، ج) د عربۍ په قاعده د ,,مذهب ،، جمع ده۔

**مذبذب** :- (م + ذب + ذب)(ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) په تذبذب کښې ۔په تردد کښې ، په دوؤ کښې حېران ، دوجاله ، هغه چې قوت فېصله ئې کمزورې وي۔ غېر مستقل مزاجه۔

هسې رنګ په مذبذب صفت موصوف شوې
نــــۀ پــوهېږم چې تۀ ناس ئې که خناس (رحمان بابا)

**مذبح** :- (مذ + بح) (ع ، اس ، ظر) د څاروو د حلالې ځاے ، قصاب خانه.

**مذكر** :- (م + ذک + کر) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ان) نر ، سړے ، (د جنس ,, ماده ،، یا ښځه متضاد).

**مذکور** :- (مذ + کو + ر) (ع ،اس مف ،مذ ، مو ــ ه) ذکر شوے ، یاد کړے شوے ـ خبرې اترې ، بیان ، افواه ، شهرت ، محاورتاً ,, نوم تلل ،،.

پــه مجلس ئې بــرامد له مېنځه تللے

بل مذکور په کښې خطابې خوشامده (خوشحال)

**مذکوره** :- (مذ +کو + ره) (ع ، اس ، مو) ,, مذکور ،،مؤنث ـ مذکور ته اشاره ـ لکه مذکوره افراد / سړي / ښځې / څیزونه / واقعه / واقعې ــ یعنې په داسې انداز د هر جنس او صیغې دپاره همدغه ټکے ,, مذکوره ،، راځي.

**مذل** :- (م + ذل + ل) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ــ ه) ذلت ورکوؤنکے ، ذلیل او رسوا کوؤنکے ـ (مع) د خداے پاک یو صفتي نوم دے.

**مذلت** :- (م + ذل + لت) (ع ، اس ، مذ) ذلت ، بې عزتي ، خواري ، سپکاوے یا سپکېدنه ، بدنامي.

**مذمت** :- (م + ذم +مت) (ع،اس،مذ،ج ـ ونه) غندنه ، بد وئینه.

**مذموم** :- (مذ + مو + م) (ع ، اس مف ، مذ ، مو ــ ه) غندلے ، غندلے شوے (کس یا کار) بد ، خراب ، قبیح.

**مذنب** :- (مذ + نب) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ان / ین) ګناه کوونکے ، ګنهګار ـ

پاک هاروت ماروت ګناه اختیار که په بابل کښې

بې لـــــه دوي مـــــذنبه نۀ یـــاد ېږي هېڅ فرښته (حافظ)

**مذهب** :- (مذ + هب) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ونه / مذاهب) د دین لار ، طریقه ، مسلک ، عقیده ، ائین ، دستور.

**مذهب** :- (م + ذه + هب) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه) هغه څیز چې سرۀ زر پرې خېژولے شوي وي.

**مذهبي** :- (مذ + هبي) (ع ف ، تر ،اس ، صف) مذهب سره تعلق لرونکے ، مذهب ته منسوب ـ د مذهب سخته پابندي کوؤنکے ، د شرعې پابند ، دیندار.

**مذي** :- (م + ذي) (اس ، مو) د لاړو په شان هغه سپینې ربنې اوبۀ چې د شهوت په وخت د وړومتیازو ځاے نه راځي.

**مرأت** :- (مر + ات) (ع ، اسم ،مذ) ائینه ، شیشه ، (د مخ کتلو).

عادت دفلک داد ے هم دښاد هم دې غمژن کا

کــه هــر څو ښۀ صفا وي بیا زنګ وینې مرأت (خوشحال)

**مراتب** :- (م + را + تب) (ع ، اس ، ج) د ,, مرتبه ،، جمع ده.

**مراثي** :- (م + را + ثي) (ع ، اس ، ج) د ,, مرثیه ،، جمع ده ـ مرثیې ، ساندې.

**مراجحه** :- (م + را + ج + ح) (ع ، اس ، مو ، ج ــ حې) ترجیح ورکول ، غوره ګڼل ، یو څیز د بل په مقابله کښې ښۀ ګڼل.

**مراجع** :-(م + را + جع) (ع ، اس ، ج)د ,, مرجع ،، جمع ده ـ د روج کولو ځایونه ، د راګرځېدلو ځایونه.

**مراجع** :- (م + را + جع) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ین) مراجعت کوونکے ، بېرته راګرځېدونکے ، راستنېدونکے.

**مراجعت** :- (م + را + ج + عت) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) رجوع کول،راتلل ، واپسي ، بېرته راګرځېدنه ، بېرته راتلل.

**مراجعه** :- (م + را + ج + عه) (و ــ مراجعت).

**مراحل** :- (م + را + حل) (ع،اس ، ج) د ,, مرحله ،، جمع ده ـ مرحلې ، منزلونه.

**مراحم** :-(م + را + حم) (ع ، اس ، ج) د ,, مرحمت ،، جمع ده ـ مهرباني ، ښېګړه ، نېکي.

**مراد** :- (مُ + را + د) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) د کوم څیز چې اراده وکړے شي ـ نیت کړے شوے ـ مقصد ، خواهش ، مطلب ، مدعا ، غرض ـ منښته ، نذر ، مطلب ، مفهوم ، د نارینه ؤ په نومونو کښې هم راځي لکه مراد خان.

**مرادونه** :- (م + را + دو + نه) (عپ ، تر ، اس ، ج) د ,, مراد ،، جمع ده.

**مرادېدل** :- (مُ / م + را + دې + د + ل) (مص) مرادمند کېدل ، مراد موندل ـ مطلب ترسره کېدل.

**مـــرادف** :- (م + را + دف) (ع ، اس ، مــذ ، ج ــــ ونــه / ات) د بــل شــاته کښېناستونکے یا سورېدونکے ، هم معنی یو مطلب لرونکي الفاظ ، لکه آتا او اوړۀ ـ لکه : هله به خبر شې چې آټه درته اوړۀ کړمه ـ (متل).

**مراسله** :- (م + را + س + ل) (ع ،اس،مو،ج ــ لې / ات) خط ، چټي ، لیک.

**مراسلات** :- (م + را + س+ لا+ت) (ع،اس،ج) د مراسله جمع ده.

**مراسلت** :- (م + را + س + لت) (ع ، اس ، مذ) سره خط و کتابت کول ، سره چیټې لیکل.

**مراسم** :- (م + را + سم) (ع ، اس ، ج) د ,, رسم ،، جمع ده ـ رسمونه ، دود دستور ، قاعدې ، تعلقات ، (د رسوم په ځاے ,, رسم ،، هم ددې د واحد په طوراستعمالېږي ـ سره ددې چې د ,, مراسم ،، اصل جمع مراسیم او د ,,رسم ،، جمع ,,رسوم ،، ده).

**مراعات** :- (م + را + عا + ت) (ع ، اس ، ج) رعایتونه ، سلوک ، مروت ، خیال یا لحاظ ساتل ـ د څاروؤ یو ځاے څرېدنه ـ په نظر کښې ساتنه ، د سترګو په ګوښو کتنه ، په ترڅ کتنه.

**مراعي** :-(م + را + عــي) (ع ، اس ، ج) د,,مرعې،،جمع ده ـ ورشوګانې ، چراګاهونه ، د څرن مېدانونه ـ رعایتونه ، لحاظونه.

**مراعي** :- (م + را + عي) (ع ، اس ، مذ) څروؤنکے ، نګهباني کوؤنکے ، رعایت کوؤنکے.

**مراغبت** :- (م + را + غ + بت) (ع ،اس ، مذ) رغبت لرنه ، خواهش لرنه ، رغبت ، خواهش.

**مرافعه** :- (م + را + ف ، عه) (ع ،اس ، مو ، ج ــ عې / ات) اپیل،د لاندې عدالت د فېصلې خلاف اوچت عدالت ته درخواست.

**مرافعې** :- (م + را + ف + عې) د ,, مرافعه ،، پښتو جمع ده.

**مرافقت** :- (م + را + ف + قت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) سره ژوند کول، یو ځاے ناسته پاسته،رفاقت کول ـ ملګرتیا.

**مراق** :- (م + را + ق) (ع ، اس ، مذ) یو مرض دے ـ مالیخولیا ، لېونتوب ، چې اکثره د دماغي کار د زیاتوالي ، ویرې یا په مقصد کښې د ناکامیابه کېدلو په وجه کېږي.

**مراقي** :- (م + را + قي) (عف ، تر ، اس ، صف) د ,, مراق ،، په مرض اخته ، (و ــ مراق).

**مراقبه** :- (م + را + ق + به) (ع ، اس ، مو ، ج ــ بې) ځانله غلې سرکښېنسته ناسته کښې ژور فکر کول ـ داسې غور کول ، تصور کول ـ د تصوف په اصطلاح کښې په ذکر او ژور فکر کښې تللو ته وائي ـ داسې چې د ګېر چاپېره دنیا نه بالکل بې پروا شي.

**مراقد** :- (م + ر + قد) (ع ،اس ، ج) د ,, مرقد ،، جمع ده ـ مرقدونه ، قبرونه.

**مراکب** :- (م + را + کب) (ع ، اس ، ج) د ,, مرکب ،، جمع ده ـ مرکبونه ، سورلۍ ، هغه څۀ چې پرې سورلي کولے شي ـ سورلي.

**مراکز** :- (م + را + کز) (ع ،اس ، ج) د ,, مرکز ،، جمع ده ـ مرکزونه.

**مراکو** :- (م + را + کو) (اس ، مذ) د بیزو یو قسم ښکلي او قیمتي څرمن چې پخوا به د مراکو ښار نه راتله.

**مرام** :- (م + را + م) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) مقصد ،مطلب ، غرض ، مراد.

**مرانده** :- (م + ران + د) (اس ، مو ، ج ــ دې) د نبوزرے پرے د زړۀ رګونه۔

**مراندے** :- (م + را + ن + دے) د ,, مرانده ،، جمع ده۔

**مرانګور** :- (م + ران + ګو + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) يو حشره چنيجے چې بدبويه وي او په توتانو کښې پيدا کيږي۔

**مراوده** :- (م + را + و + ده) (ع ، اسم) خپلولي ، رشته داري ، تعلق ، سره ناسته پاسته۔

**مراوه** :- (م + را + وه) (اس ، مو ، ج ــــــ وې) د ارټ د څرخ هغه برخه چې لوټکي ورسره تړلے شي۔

**مراهم** :- (م + را + هم) (ع ، اس ، ج) د ,, مرهم ،، جمع ده ۔مرهمونه ، چې ملهمونه هم وئيلے شي۔

**مربه** :- (م + رب + به) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ بې) يو څاے کړې شوې مېوې چې د پخلي په وخت په کښې خواږۀ او څۀ نورې مصالحې هم اچولے شوې وي۔ د مېوۀ مرکب۔

**مربع** :- (م + رب + بع) (ع ،اس ، مذ ، ج ـــ بعې / بې) څلور ګوټيځ شکل چې څلور واړه ضلعې او زاويې ئې سره برابرې وي ۔ د زمکې يعنې جائيداد يو خاص رقبه چې د فوځي انعام په توګه ورکولے شي۔

**مربعي** :- (م + رب + ب + عي) (ع ، ف ، تر ، صف) د مربعې په شکل۔

**ـــــ منشور** :- (ــــ م + ن + شو + ر) هغه منشور چې څلور اړخونه لري۔

**مربوط** :- (م + ر + بو + ط) (ع ، اس ، مف،مذ ،موـــ ه) سره تړلے ، سره جوخت ، سره پيوست نښتے ، وابسته۔

**مربوطات** :- (مر + بو + طا + ت) (ع ، اس ، مو ، ج) د مربوطه جمع ده۔

**مرتب** :- (م + رت + تب) (ع ، اس مف ، مذ ، موــــ ه) ترتيب ورکړے شوے ، په ترتيب کړے شوے ۔په ترتيب سره اېښودے شوے۔

**مرتِب** :- (م + رت + تِب) (ع ، اسم صفت، فاعل واحد مذ) ترتيب ورکوونکے ، سمووونکے۔

**مرتبان** :- (مر + ت + با + ن) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د دنګې غړې لوړ لوښے چې په کښې اکثر خلق اچار يا داسې څيزونه اچوي۔

**مرتبه** :- (مر + ت + به) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ بې / مراتب) درجه ، مقام ، حېثيت۔

**مرتجل** :- (مر + ت + جل) (ع ، اس ، صف ، مذ ، موـــ ه) هغه شعر چې بغير د سوچ او فکر نه ناڅاپي اووئيلے شي۔ في البديهه وئيلے شوے۔

**مرتجي** :- (مر + ت +جي) (ع،اس،مذ ،ج ـ ان) ارتجا کوؤنکے ، رسيد کوؤنکے ، اميدوار ، توقع يا طمع لرونکے۔

**مرتد** :- (مر + تد) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ين) د اسلام نه ګرځېدونکے ، کفر ته اوړېدونکے ۔

**مرتده** :- (مر + ت + ده) (عف ، اس،مو،ج ـ دې) د ,, مدتد ،، مؤنث دے۔

**مرتسم** :- (مر + ت + سم) (ع ، اس ، مف ، مذ ،موـــ ه) نخښه شوے ، مهر شوے ،ريکارډ کړے شوے۔

**مرتسم** :- (مر + ت + سم) (ع ، اس صف،مذ ،ج ـــ ان) نخښه لګوؤنکے ، مهر لګوؤنکے ، د ريکارډ په توګه محفوظ کوؤنکے۔

**مرتسي** :- (مر + ت + سي) (ع ، اس ،صف) رشوت اخستونکے ، رشوت خور ، بډې خور ، بډې اخستونکے۔

**مرتعش** :- (مُر + ت + عش) (ع ، اس ،صف،مذ ،موـ ه) په ارتعاش کښې راتلونکے ،لړځېدونکے ، رپېدونکے ، داسې خوځېدونکے۔

**مرتضٰي** :- (مر + ت + ضٰی) (ع ، صف ، مذ) خوښ کړے ، مقبول (مع) د حضرت کرم الله وجهه لقب ۔

**مرتکب** :- (مر + ت + کب) (ع ، اس ، صف ، مذ ، موـــ ه) څۀ عمل ، کار کوؤنکے ، اکثر د ,,جرم ،، سره راځي۔

**مرثيه** :- (مر + ثي + يه) (ع ، اس ، مو) هغه نظم چې د چا په مرګ وئيلے شوے وي ۔ دا نظم د مسمط يا د ترجيع بند د ترکيب بند په شکل کښې وي ۔ (که چېرې دغه نظم د رباعی ، قطعې ،غزل يا د قصيدې په شکل وي او په مطلع ئې بحر اسلام يا د سلامی د مجرې نوم راشي ۔نو بيا ورته ,,سلام ،، وائي او که مستزاد په انداز وي نو بيا نوحه بللے شي)۔

**مرجان** :- (مر + جا + ن) (ع ، اس ، جم) يو قسم سرۀ چينجي چې جاله ئې په سمندر کښې وي او مختلف شکلونه ئې جوړ شي ۔په داروګانو کښې پکارېږي (هـ : مونګا) ۔ د سرو او د زنانه ؤ په نومونو کښې راځي۔ د تېز سور رنګ په وجه ، شاعران ورسره د يار دشونډوتشبيهه ورکوي۔

**مرجانه** :- (مر + جا + ن) (عف ، صف) د مرجان مؤنث دے۔

**مرجمک** :- (مر + ج + مک) (ف اس ،جم) مسور ،د مسورو دال۔

**مرجوم** :- (مر + جو + م) (ع ، اس ، مف ، مذ ، موـــ ه) هغه څوک چې رجم کړے شوے وي هغه چې په کاڼو ويشتلے شوے وي سنګسار شوے ۔ شړونے ، له دره شړلے شوے۔

**مرجونا** :- (مر + جو + نا) (اس ، مذ ، ج ـــ ګان) هغه سړے چې په سيند يا سمندر کښې غوپې وهي او د سيند د تل نه مرغلرې وغېره راوباسي ۔غوپه مار ،غوپې وهونکے ، غواص ، هغه سړي ته هم وئيلے شي چې سست پست وي۔

**مرجي** :- (مر + جي) (اس ، مو) د ماشومانو مرض ، رشم خوږ ،د کوچنيانو مرجني۔

**مرجی** :- (مر + جی) (اس ، مو) د مهرې يو قسم دے۔

**مرجيوڼ** :- (مر + جي + وڼ) (و ـــ مرجونا)۔

**مرچ** :- (م + رچ) (اسم ، واحد ، جمع ، مذ) د تور رنګ يو تخم دے ۔چې د بوټي ئې هم دغه نوم دے ۔اردو کښې مرچ وئيلے شي۔ د يو يا دوه سوتره قطر وړو وړو دغه دانو ته د رنګ په وجه تور مرچ هم وئيلے۔

**مرچک** :- (مر + چک) (اس ، مذ ، ج ـــــ ي) مرچکے ، په هم دغه نوم د يو بوټي د وړوکي سپينکي ګل نه پس راوتونکي فصل نوم دے ۔چې اول اول ئې رنګ شين وي او بيا سور شي۔ د ګوتې برابر ۔دغسې اوږد يا زيات او يا د ګوتې برابر وي۔ ذائقه ئې ترخه وي۔محاوره کښې تريخ کس ته هم ,,مرچکے ،، وائي ۔مرمی يا اورمېږ ۔دغه معنٰی سره د مرچک جمع ,,مرچکونه ،، کېږي۔

**مرچکي** :- (مر + چ + کي) (اس ، جم) د ,, مرچکے ،، جمع ده۔

**مرچکے** :- (مر + چ + کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) زهر بوټے ، د يو بوټي نوم دے ۔ګنډېجر۔

**مُرچل** :- (مُر + چل) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) مورچه ، سنګر ، مورچل ، (ځينې خلق ئې مؤنث ګڼي او جمع ئې مورچلے کوي)۔

مرچنډوخ :- (مر + چن + ډو + خ) (اس ، مذ ، موـــــ ه) چينډخ ، چينځښ ، چينډښ مار۔

**مرچه** :- (مُر + چ) (اس ، مو ، ج ـــــ چې) د اوسپنې زنګ ، چې اوسپنه خوري مورچه ، وېنۀ ، چې لړګے خوري ، مورچه۔

**مُرچه** :- (مُر+چه) (اس ، مو،ج ــ چې) مورچه،مورچل،مرچل۔

**مرڅک** :- (مر + څک) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) وړه څرمښکی ، وړه بيبياتو ، وړه چمچوری ، د کربوړې په شان يوه حشره چې په چتونو کښې ګرځي۔

**مرڅړے** :- (مر + څ + ړے) (اسم،واحد،مذ ،ج ـــ ي) د مېزرې بوټے۔

**مرځي** :- (م + ر + ځ + ي) (پ ، اس ، مذ ، ج ــ يان / ځي) دښمن۔

**مرخي** :- (مر + خي) (اس مو) دښمني ، ميرخي ، بدي۔

**مرخے** :- (مر + خے) (اس ، مذ ، ج ـــ خي) دښمن ، میرخے ۔

**مرخېړے** :- (مر + خېړے) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) خرمېږے ، مرخېړے ، خرېړے ۔

**مرخینګ** :- (مر + خینګ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د هور چمټه ، دست پناه ، د کلکارانو اله ، تپندے ، لاسغورے کرنډۍ یا ګېرماله ۔

**مرحبا** :- (مر + ح + با) (ع ، حرف) د شابسي کلمه ده ۔ شاباش ، افرین ، واه واه ، ډېر ښهٔ وغېره ۔

**مرحله** :- (مر + ح + له) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ لې / مراحل) پړاؤ ، منزل ، درجه ، مرتبه ، د سفر په وخت د دمې ځاے ۔

**مرحمت** :- (مر + ح + مت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / مراحم) مهرباني ، لطف ، نوازش ، چاته څهٔ ورکول ۔ پېرزوینه ۔

**مرحوم** :- (مر + حو + م) (ع ، اس مف ، مذ ، مو ـــ ه) رحم کړے شوے ، هغه چې رحم پرې شوے وي ۔ بخښلے شوے ۔ محاورتاً وفات شوے ، فوت شوے مړ ۔

**مرختې** :- (مرې + خ + تې) (اس ، مو) عُناب ، مېوه چې په دارو کښې استعمالېږي ۔

**مرخیني** :- (مر + خي + نی) (و ـــ مرختې) ۔

**مرد** :- (مر + د) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) سړے ، نارینه ، بشر ، مېړنے ، بهادر ، زړهٔ ور ۔

**مرد** :- (مر + د) (اس ، مذ) مات هډوکے چې زور یا تاؤ ئې خوړلے وي او د غوټې په شان ښکاري ۔

**مرداب** :- (مر + دا + ب) (ف ، اس ، مذ) ولاړې اوبهٔ ، ډنډ ، تالاؤ ۔

**مرداد** :- (مر + دا + د) (ف ، اس ، مع) د شمسي کال پنځمه میاشت ۔ چې یو دېرش ورځې لري او د جولائي د میاشت سره یا د بادرو میاشت سره سمون خوري ۔

**مردار** :- (م / مو + ر + دا + ر) (ف ، اس ، صف ، مذ ، ج ـــ ان) هغه ځناور یا بل څهٔ چې خوړل ئې حرام وي ۔ هغه حلال ځناور چې بې ذبح کولو مړ وي یا بې تکبیره ذبح کړے شوے وي یا د غېرالله په نوم ذبح کړے شوے وي ۔ پلیت ، نجس ، ناپاکه ، خراب کارونه کوؤنکے ، څوک چې بې دینه مړے شوے وي ۔

**ـــ سنګ** :- (ـــ سن + ګ) (اس ، مذ) یو قسم دارو دي ۔ مرده سنګ ۔

**مرداړول** :- (مر + دا + ر + ؤل) (مص) ځناور بغېر د حلالولو نه مرګ ته سپارل ۔ خرابول ، ګنده کول ، بربادول ۔ د کافر وژل / وجل ۔

**مرداره** :- (مر + دا + ره) (اس مو ، ج ـــ رې) د ,, مردار ،، مؤنث دے ۔ خرابه ، لکه : مرداره ښځه ۔

**مردارے** :- (مر + دا + رے) (اس ، مو ـــ ج) خرابے ۔

**مرداري** :- (مر + دا + ري) (ف تر ، اس ، مو) مردار والے ، ناپاکي ، پلیتي ، پلیتوالے ۔ بداخلاقي ، فحش کاري ۔

**مردارېدل** :- (مر + دا + رې + دل) (اوګورئ ۔ مردار) د مردار مصدري حالت ۔

**مردانګي** :- (مر + دا + ن + ګي) (ف تر ، اس ، مو) بهادري ، دلیري ، شجاعت ۔

**مردانه** :- (مر + دا + نه) (ف ، صف) فارینه ، د سړو ۔ د ,, مرد ،، په انداز ، د بهادرۍ په طور ، په زړهٔ ورتوب سره ۔

**مردک** :- (مر + دک) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ي) د ,, مرد ،، تصغیر دے ۔ وړوکے سړے ، سړے ګوتے ، ذلیل یا سپک سړے ، لاندې سړے ۔ د سترګو یا ګاټو د بهر نه هغه حصه چې وروځې او ځیځمې تر منځه ده ۔ د توپې توپک ګولۍ ۔ د کاڼي یا ښیښې ګولۍ یا ښیښولے یا بلورے ۔ ځینې لهجو کښې د ''مر'' (ر) په (ړ) وئیلے شي ۔

نهٔ مې کار په خاص و عام نهٔ په دیوان دے
نـــــهٔ پـــــرور ولاړ د هر یوه مردک یم (خوشحال)

**مردکه** :- (مر + د + که) (و ـــ مردک او مړدکے) ۔

**مُردګان** :- (مر + د + ګا + ن) (ف ، اس ، ج) د ,, مُرده ،، جمع ده ۔ مړي ۔

**مردم** :- (مر + دم) (ف ، اس ، جم) سړي ، خلق ، اولس ۔

**ـــ ګیاه** :- (ـــ ګ + یا + ه) (ف تر ، اس ، مو) یو قسم واښهٔ دي ۔ چې جرړې ئې د بني ادم په شکل وي ۔ او پاڼې ئې تل مخ په نمر وي ۔

**ـــ ماهي** :- (ـــ ما + هي) (ف تر ، اس ، مذ) یو قسم مهے (کب) وائي چې ددغې کب وجود د بني ادم په شان وي ۔

**مردمک** :- (مر + د + مک) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د سترګو تور ۔

ع نُور به نهٔ راشي زما له مردکه (خوشحال)

**مردن** :- (م + ر + د + ن) (ف ، مص) د فارسي د مرګ مصدر دے ۔ مړ کېدل ۔

**مردنګ** :- (مر + دن + ګ) (هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) یو قسم ډولکے دے چې په یو طرف غږولے شي ۔ یو طرفیځ ډولکے ۔

**مردود** :- (مر + دو + د) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) رد شوے ، شړلے شوے ۔ واپس کړے شوے ۔

**مرده** :- (مر + ده) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ګان) مړے یا مړ ۔

**مرده** :- (مر + ده) (اس ، مو ، ج ـــ دې) د ژرندې د ګړګرې لرګے ۔

**مردي** :- (م + ر + دي) (ف تر ، اسم ، صف) طاقت ، نرتوب د مردانو هسې کار ، د سړي هسې کار ، تکړه والے ، بهادري ، شجاعت ، توره ، مېړانه ۔ مني ، د سړي خاص اوبهٔ ۔

**مردي کښ** :- (مر + دي + کښ) (پ تر ، اس ، مذ) یو غرنیز خوشبویه بوټے دے چې وړې وړې پاڼې لري ۔ مګښبې ۔ مړدے کښ ، هم ورته وائي ۔

**مرړي** :- (مر + ړي) (اس ، واحد ، مذ) یو قسم ساګ دے ۔

**مرړۍ** :- (مر + ړۍ) (اس ، مو) هغه څیز چې ټوپک نه پرې لتے راوکاږي ۔ پینبې ، مرورے ۔

**مرز** :- (مر + ز) (ف ، اس ، مذ) د کروندې جوګه زمکه ۔ زمکه ، حد ، پوله ، سرحد ، چې تکے ,, بان ،، ورسره اولګي لکه ,, مرزبان ،، نو کرونده ګر او د سرحد پاسبان ته وئیلے شي ۔

**مرز** :- (م + رز) (اس ، مذ) یو قسم بوټے دے چې جرړه ئې بند بند وي ۔ او واړهٔ ئې کچه خوري ۔

**مرزا** :- (مر + زا) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ګان) د مغلو یو لقب ، مغل بچے ، د کلي د پټواري لقب ، د تاڼې د محرر لقب ، مرزا خان انصاري د پښتو یو مېړنے او شاعر

**مرزائي** :- (مر + زا + یي) (ف ، اس ، مو) مرزا توب ، د مرزاګانو طور طریقې ، یو خاص قسم واسکټ ، صدري ، قادیانے ، د مرزا غلام احمد منونکے ۔

مرزغن :- (مر + ز + غن) ۔

**مرزغان** :- (مر + ز + غا + ن) (ف ، اس ، مذ) قبرستان ، مقبره ، هدیره ، دوزخ ۔

**مرزه** :- (مر + زه) (ف ، اس) ډیوټ ، د ډیوې د کښېښودلو لوښے ۔ چراغ دان ۔ ګرماله ، ګل ماله ۔

**مرسته** :- (م + رس + تهٔ + نه) (و ـــ مرسته) ۔

**مرستوال** :- (م + رس + ت + وا + ل) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) (و ـــ مرستیال) ۔

**مرستون** :- (م + رس + تو + ن) (و ـــ مرستونے) ۔

**مرستونے** :- (م + رس + تو + نے) (پ تر ، اس ، فا ، مذ ، ج ـــ ني) مرسته کوؤنکے ، طرفداري کوؤنکے پره کوؤنکے ، طرفدار ، حمایتي ۔

**مرسته** :- (م + رس + ته) (پ اس ، مو ، ج ـــ تې) امداد ، تعاون ، طرف دارے ۔

عاشقان له عقله مرسته کله غواړي
څـهٔ پـــروا کا لېـوني د رهنمون (حسېن)

تائيد.

په دا مرسته د ېر نقلونه
دي راغــلي دليلونــه (زړه پانګه له سرعت الاسلام)

**مرستې** :- (م + رس + تې) د مرسته جمع - په حالت مفعول کښې چې ذکر ئې کولے شي.

**مرسل** :- (مر + سل) (ع ،اس ، مف،ج ـ ان / ين) ارسال کړے ، لېږلے شوے ، استولے شوے. پېغمبر[۴] ، رسول[۴].

**مرسل** :- (مر + سل) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) لېږونکے ، رستوؤنکے.

**مرسلان** :- د مرسل جمع ده. (و ـــ مرسل).

مرسلان پېغمبران مرګي خاموش کړل
چې ئې خولې وې په ثنا د رب ګوياني (حافظ)

**مرسله** :- (مر + س + له) (ع،اس ، مو ، ج ـــ لے) لېږلے شوے ، استولے شوے - د غاړې هار يا کالے.

**مرسله** :- (مر + س + له) (ع ، اس ، مذ ، صف) لېږونکے ، ارسال کوؤنکے.

**مرسلين** :- (مر + س + لي + ن) (ع ، اس ، ج) د ,, مرسل ،، جمع ده - د نارينه ؤ په نومونو کښې استعمالېږي.

**مرسوم** :- (مر + سو + م) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) رسم کړے شوے ، رواج شوے ، قاعده ، رسم ، رواج ،نښان لګولے شوے - تنخواه ، وظيفه ، مواجب.

**مرشد** :- (مر + شد) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ين) ارشاد کوؤنکے ، پير ، رهنما ، هادي سمه لار ښودونکے.

**مرصع** :- (م + رص + صع) (ع ، اس ، صف ، مذ) هغه کالے (زېور) ، جامه ، يا بل کوم څيز چې غمي په کښې ټک وهل شوي وي - (بديع) د نظم يا د نثر هغه عبارت چې په کښې د يوې جملې د هر لفظ په مقابله کښې په بله جمله کښې داسې الفاظ راوستے شوي وي چې وزن او قافيه ئې يو شان وي - ښکلے ، اراسته کړے شوے.

مرصع بېسر د نور لړي په پوزه
اکتفا په تور لونګ کا هغه يار (خوشحال)

**مرض** :- (م + رض) (ع ، اس ، مذ ،ج ـــ ونه / امراض) بيماري ، رنځ ، ناروغي ، ناجوړتيا.

**مرضي** :- (م + ر + ضي) (عپ،تر ، صف) ناروغه ، ناجوړه ، مرض واله.

**مرضي** :- (مر + ضي) (ع ، اس ، مو) رضا مندي ، خوښه ، خوښي ، رضا ، اواز ، منظوري ، خواهش.

**مرطوب** :- (مر+طو + ب) (اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) رطوبت واله ، نمجن ، نوجن.

**مرطوبيت** :- (مر + طو + بي + يت) (ع ، اس ، مذ) نمجنوالے ، لوند والے.

**مرعوب** :- (مر + عو + ب) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) په رعب کښې راتلل ، ويرېدل.

**مرغ** :- (مر + غ) (اس ، مذ) د ځمکې شين والے ، شنهٔ ، کبل (وابنهٔ) هغه تېره چې د لاندې نه خالي وي او شپانهٔ د باران په وخت ئې تر لاندې کښيني - کوغالے - نصيب ، موقع (چانس) شګون - ځينې خلق ئې د ,, م ،، حرکت (ء) کوي او مرغ وائي.

**مرغ** :- (م + رغ) (اس ، مذ) هغه دروند کاڼے چې پهلوانان پرې ورزش کوي او د زمکې نه ئې اوچتوي او ږدي.

**مرغ** :- (مر + غ) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) چرګ ، مارغهٔ.

**مرغاب** :- (مر + غا + ب) (اس ، مع) د يوې علاقې نوم دے.

**مرغابۍ** :- (مر + غا + بۍ) (اس ، مو) ايلۍ ، د اوبو مشهور مارغهٔ ، شين غاړے / غاړې د ايلو ځنګلي او هغه مشهور قسم دے چې اکثر ئې خلق ښکار کوي.

**مرغاچکه** :- (م + ر + غا + چ + که) (اس ، مو ، ج ـــ کې) مرواريد ، مرغلره.

**مرغټانه** :- (مر + غ + ټا+نه) (اس ، مو) ګونګټې.

**مرغټاني** :- (مر + غ + ټا + نې) (اس ، مو) د جينکو د يوې لوبې نوم - چې غونډ کړے ټيکرو يا غونډو کاڼو باندې کولے شي.

**مرغچچې** :- (مر + غ + چه + چې) (اس ، مذ ، ج ـــ چې) خرمهره ، ګوجے ، کونجکه.

له يوه دريابه خېژي
مرغچچې مرغلرې (خوشحال)

**مرغه چکه** :- (مر + غه + چه + که) (و ـــ مرغه چنه).

**مرغچنه** :- (مر+غ +چه +نه) (اس،مو،ج ـــ نې) سبزه زار ، چمن.

**مرغچې** :- (م + ر + غ + چې) (اس ، مذ ، ج ـــ چې) د مرواريدو ګله بند.

**مرغړوه** :- (م + ر + غ + ړ + ه) (اس ، مو ، ج ـــ ې) د يوې غرئيزې ونې نوم دے.

**مرغړې** :- (مر + غ + ړې) (اس ، مذ ، ج ـــ ړي) غدود.

**مرغړين** :- (مر + غ + ړي + ن) (و ـــ مرغلين).

**مرغزار** :- (مر + غُ + زا + ر) (ف،تر،اس،مذ،ج ـــ ونه) سبزه زار ، هغه مېدان وغېره چې په ګياه پټ او شين وي.

**مرغسنه** :- (مر + غ + س + نه) (اس ، مو) نرۍ وريځ ، د وريځ نرے څادر يا پرده.

**مرغک** :- (مر+غک) (اس،مذ) د ,, مرغ ،، تصغير دے - وړوکے مارغهٔ ، د يو سرود نوم دے.

**مرغک** :- (مر + غک) (اس ، مذ) د اوښانو يو مرض ، د دروازې چُوړ ، چې تنبه په کښې ګرځي - د ژرندې د څرخ لخک (چوړ).

**مرغکۍ** :- (مر + غ + کۍ) (اس ، مو) يو قسم پاستهٔ زېړ رنګې وابنهٔ چې په کورونو او جماعتونو کښې په فرش غوړولے شي - سرګړے.

**مرغلره** :- (م + ر + غ + ل + ر) (اس ،مو،ج ـــ رې) غمے ،دُر ،ګوهر ،د زنانهٔ ؤ په نومونو کښې راځي.

**مرغلرې** :- (مر+غ+ل+رې) د ,, مرغلره ،، جمع ده - د ,, مرغلره ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**مرغلمزے** :- (مر + غل + م + زے) (پ تر ، اس ، مذ ،ج ـــ زي) هغه مزے چې په کښې مرغلرې پېرلے شوې وي - د لړواړېدو رشته ، مرغلين.

**مرغلين** :- (مر + غ + لي + ن) (اس ، مذ) يو څو غښتلي شوي تارونه چې سره کلک شوي وي - کلېچ - (هر چا ته خپل مزے مرغلين دے) - (متل)

**مرغمي** :- (مر + غ + مي) د چېلۍ بچي ، بکري.

**مرغنډي** :- (مر + غن + ډئ) (اس ، مو) بې اتفاقي ، نفاق.

**مرغوب** :- (مر + غو + ب) (ع ، اس مف ، مذ ، مو ـــ ه) رغبت شوے - چې زړهٔ ورته کېږي - د خوښې ، د زړهٔ خوښې ، پسنديده.

**مرغوبيت** :- (م + ر + غو + بي + ي + ت) (ع ، اس ، مذ) خوښه ، پسنديدګي ، خوښونه

**مرغوټانے** :- (مر + غو + ټا + نے) د نوي زېږېدلي ماشوم کُچو او خمير وغېره سره مالش.

**مرغوځي** :- (مر + غو + ځي) (اس ، ج) لومې ، دامونه.

**مرغوڅے** :- (مر + غو + سې) (اس ، مذ ، ج ـــ څي) مردکے ، مردکه ، بلورے ، شينولے کانچه.

**مرغوړ** :- (مر + غو + ړ)(اس ، مذ ، کبر ، لويي.

**مرغوړنه** :- (مر+غو + ړ + نه)(اس،مو) غرور،تکبر،کبر، لوئي.

**مرغوړے** :- (مر + غو + ړے)(اس ، مذ ، ج ــــ ړي) مردکے ، بلورے ، (د هلکانو د لوبو څيز).

**مرغوزے** :- (مر+غو+زے)(اس ، مذ ، ج ــــ زي) د مرغۍ بچے.

**مرغول** :- (مر + غو + ل)(ف ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) تاؤ راتاؤ ، پيچيده ، گلگوټے.

**مرغوله** :- (مر + غو + له)(ف اس ، مو ، ج ــ لې) د ,, مرغول ،، تانيث دے.

**مرغوچکے** :- (مر + غوم + کے)(اس ، مذ) د هلکانو د يوې لوبې نوم دے چې په کښې دوه ډلې جوړې شي.يوه ډله د بلې ډلې نه پټ يو هلک ته څادر کښې پټ کړي.بيا د بلې ډلې يو هلک راشي دغه هلک ئې پښه کلکه ونيسي .بيا د پوښتبدلے شي چې څوک دے ؟ که هغه په خپل فکر د پښې ښوونکي نوم درست وښائي نو وگټي گټي نو ببلي او که ببلي نو دغه گټونکے ټولے تر هغې پورې دغه پټ شوے هلک او د هغۀ ملگري په درو وهي تر کومې چې دغې هلک خپله پښه /ښپه د نيونکي نه خلاصه کړې نۀ وي. (پ ق).

**مرغومکے** :- (مر + غوم + کے)(اس ، مذ ، ج ــــ کي) د ,, مرغومے ،، تصغير دے.وړوکے مرغومے.

**مرغومے** :- (مر + غو + مے)(اس ، مذ ، ج ــــ مي) بکروټے ، د چېلۍ بچے ، چېلنگړے ،چيلوټے.

**مرغونکے** :- (مر + غون + کے)(اس ، مذ) يو قسم غرئيز بوټے دے .څاروي ئې خوري

**مرغه** :- (مر + غه)(اس ، مذ) کبل ، شنه گياه ، چمن.

**مرغۍ** :- (مر + غۍ)(اس ، مو) وړوکے مارغۀ ، پرنده (وره) چرچنه ، چنچڼه.

**مرغے** :- (م + ر + غے)(اس ، مذ ، ج ــ غي) د مرغ يا مرغه بدل شکل .بخت ، قسمت ، پال.

**مرغے** :- (مر + غے)(اس ، مذ ، ج ــ غي) مارغۀ ، نر چنچڼه.

**مرغے پل** :- (مر + غے + پل)(اس ،مذ) د يو قسم گياه نوم دے.

**مرغېچے** :- (مر + غې + چے)(اس ، مذ ،ج ــــ چي)کخے ،هغه کس چې د فصل نه مارغان شړي.د فصل څوکيدار.

**مرغېدل** :- (مر + غې + دل)(مص) شين کېدل ، لـه کبله ډکېدل ، چمن جوړېدل.

**مرغېړ** :- (مر + غې + ړ).

**مرغېړے** :- (مر + غې + ړے)(اس ، مذ ، ج ــــ ړي) يو قسم سبزي ده چې د دريابونو په غاړه يا په شگلوړه زمکه کېږي او کچه خوړے شي.

**مرغېنا** :- (مر + غے + نا)(پ تر،اس، مذ ، ج ــــ گان) نـامرد ، نـامرد ، سست پست سړے ، بې کاره.

**مرغېړے** :- (مر+غې+ړے)(اس،مذ،ج ــ ړي) مرغړے ، غدود.

**مرقات** :- (مر + قا + ت)(ع ، اس) پوړۍ ، اندرپايه ، زينه.

**مرقد** :- (مر + قد)(ع ، اس،مذ،ج ــ ونه / مراقد) د ارام ځـــــاے ، د اودۀ کېدو ځاے،ارام گاه.مجازاً قبر ، گور.

**مرکاوو** :- (م + ر + کا + وو)(اسم ، صفت ، مذ ، ج ــــ وان) د مرکې يا جرگې غړے ، مرکه يا جرگه کښې د کوم فريق له خوا شامل غړے. د جرگو مرکو ماهر، د خلقو تر مېنځه د روغې جوړې راوستونکے.

**مرکب** :- (مر + کب)(ع ، اس و مذ ، ج ــ ونه / مراکب) سورلي، هغه څۀ چې پرې سورلي کولے شي.

**مرکب** :- (م + رک + کب)(ع ، اس ، مذ) د دوؤ يا زياتو څيزونو نه جوړ يو څيز.ترکيب ورکړے شوې ، سره گډ (وډ) ، سياهي (د ليک) ، (گرائمر) دوؤ يا زياتو الفاظو نه جوړ کړے شوے لفظ .لکه مرکب اضافي يا مرکب تام وغېره. جمع ئې مرکبات ده.

**مرکچي** :- (م + ر + که + چي)(پ تر، اس ،مذ ، ج ــــ ان) (و ــــ مرکاوو).

**مرکز** :- (مر + کز)(ع ، اس،مذ،ج ــ ونه / مراکز) مېنځ يا سنټر.

**مرکزه** :- (مر + که + زه)(اسم ، مو، واحد ، ج ــــ ې) په مرکز يا مېنځ کښې پروت څيز.

**مرکزي** :- (مر + ک + زي)(عف ،تر ، صف) مرکز سره تعلق لرونکے ، مېنځ ته منسوب ، د مېنځ ، وسطي.

**مرکزيت** :- (مر + که + زي + يت)(ع ، اس ، صف ، مذ) مرکزي حېثيت لرل.

**مرکنډ** :- (مر + کن + ډ)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د مرۍ پورتنۍ حصه چې هغې نه پورته مخ سر شروع کېږي.مرکنډۍ هم وئيلے شي.

**مرکنډۍ** :- (مر + کن + ډۍ)(و ــــ مرگنډ).

**مرکنډي** :- (مر + کن + ډي)(اس ، مذ ، ج) د پېشتري ساګ تخم چې ازغن ازغن وي. مارکونډۍ ، يو قسم ازغن بوټے دے.

**مرکوال** :- (م + ر + که + وا + ل)(پ تر، اس ، مذ، ج ــــ ان) د جرگې يا مرکې سړے ، مرکه چي.

**مرکوز** :- (مر + کو + ز)(ع ، اس ، مف،مذ،مو ــــ ه) مرکز يا مېنځ ته مخامخ کړے شوے/ شوي يا راړولے شوي. ښخ کړے شوے / شوي. محکم شوے يا شوي.

**مرکونډۍ** :- (مر + کون + ډۍ)(اس ، مو)(و ــــ مرکونډي).

**مرکه** :- (م + ر + که) (اس ، مو ، ج ــــ کې) جرگه ، صحبت ، مجلس ، يو بل سره ، خبرې اترې.صلاح مصلحت ، د صلاح مصلحت جرگه.

**مرکه چي** :- (م + ر + ک + چي)(و ــــ مرکچي).

**مرکې** :- (م + ر + کې) د ,, مرکه ،، جمع ده . د ,, مرکه، ،بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**مرگ** :- (مر + گ)(ف ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) مړينه ، موت.

**مرگانه** :- (مر + گا + نه)(ف ، تر ، تف) مرگ تـه نـږدې .مرگاني هم وئيلے شي.

**مرگانۍ** :- (م + ر + گا + ن + ئ)(اس ، مو) د هلکانو يوه لوبه ده .چې په زمکه کښې درې قُتې جوړې کړي او بيا د لرې نه کانړي په کښې کوي.

**مرگاني** :- (مر + گا + ني)(ف ، تر ، تف)(و ــــ مرگانه).

**مرگټ** :- (مـر + گټ)(هـ ، اس ، مـذ ، ج ــــ ونـه) هغه ځاے چېرتـه چې هندوان خپل مړي سوځوي.

**مرگرے** :- (مر + گ + رے) اوگورئ : ملگرے.

**مرگو** :- (مر + گو)(اس ، مو) عام لوگ ، په وبائي مرض د عامو خلقو مړل کېدل.قاتل ، اجرتي قاتل هغه سړے چې گڼ مرگونه ئې کړي وي.

**ــــ راتلل** :- وبا راتلل.

**ــــ کېدل** :- وبا يا وبائي رنځ خوورېدل.

**مرگوټي** :- (مر + گو + ټي)(۱) د ,, مرگوټے ،، جمع ده. (۲) د ,, مرگوټے ،، بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

چار د مرگوټي معاينه ده

ښۀ تر ژوندونه هر ائينه ده (خوشحال)

**مرگوټے** :- (مر + گو + ټے)(اس ، مذ ، ج ــــ ټي) د ,, مرگ ،، تصغير دے. د غصې يا ښۀ جذباتو په موقع ,,مرگ،، ته هم وائي.لکه چاته د دعا په غرض وئيلے شي. ,,مرگوټے ورک شه ،، او د غصې په وخت د ښيرو په انداز کښې وئيلے شي. ,, مرگوټے ،، هم درلـه يا ورلـه نشته،، محاوره

کښې په هم دغه موقعو ,,مرګے ،، هم وئيلے کېږي۔

اورنګزېب چې ارائش د تخت و تاج کا
تخت و تاج به ئې مرګے تاخت و تاراج کا (خوشحال)

**مرګونے** :- (مر + ګو + نے) (اس ، مذ ، ج ـه) د اهنګر دوکان ،د لوهار دکان۔

**مرګونے** :- (مر + ګو + نے) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـ نې) مر کېدونکے ، مرګ ته نزدې ، قريب الموت ،مرګي حال۔

**مرګي** :- (مر + ګي) د ,,مرګ،، يا ,,مرګے ،، جمع ده ۔د مرګ يا مرګے بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**مرګي** :- (مر + ګي) (اس ، مو) مېرګي هم وئيلے شي ۔چې غوټه يا دوره ئې هغه زياتره راځي کله چې (د مېرګي) مريض اوبۀ يا هور اووينې اکثر ددغه رنځور مرګ د اوبو يا د هوره وي۔

**مرګے** :- (مر + ګے) (اس ، مذ ، ج ـــ ګي) د ,,مرګ،، تصغير دے ۔ اوګورئ ,,مرګوټے ،، ۔

**مرګيچي** :- (مر + ګي / ګ + چي) (فعل ، مو ، مذ) ملګرتيا ، يارانه ، خصوصاً چې د معصوميت او اخلاص نه ډکه وي ۔ ملګري / ې ته د مخاطبې په وخت هم وئيلے شي۔

**مرګيچے** :- (مر + ګي + چے) (اس ، مذ ، ج ـ چي) ملګرے ،دوست ، مل ، اکثر واړۀ سره ملګرو ته ,,مرګيچ،، وائي۔يا لويان ئې د ورو ماشومانو سره وائي۔

**مرله** :- (مر + له) (اس ، مذ ، ج ـــ لې) د زمکې د يو انداز احاطې نوم دے چې ۲۵ ، ۲۷۲ مربع فټه جوړېږي يعنې ۵ ، ۱۲ × ۵ ، ۱۲ شل مربې يو کنال او څلور کناله يو جريب جوړېږي۔

**مرلي** :- (مر + لي) (هـ ، اس ، مو) شپېلۍ ، بين ، چې مارانو ته وهلے شي۔ اصلاً ,,مرلي،، دے چې شپېلۍ يا ---- ته وئيلے شي۔

**مرم** :- (م+ رم) د مړ کېدل يا مړل مصدر څخه فعل حال واحد متکلم صيغه ۔ يعنې ,,زۀ مړ کېږم ،، مرم۔زۀ سخت خفه کېږم۔ مشهور متل دے چې : زۀ مرم له غوچې او تۀ بيا وايې چې غوچې۔

مرم په دا چې په زينت په غېږ کښې نيسي
تش پـــه تـــوره ډېــر منت په عبيد مه کړه (حميد)

**مرمت** :-(م + رم + مت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د وران يا شوي څيز بيا جوړول يا شلېدلې جامې ګنډل۔درستونه۔ محاورتاً د انسان وهلو ټکولو ته هم وائي

**مرمخے** :- (مر + مه + خے) (اس ، مذ) يو قسم غرئيز بوټے چې د رشقې په شان وي خو پاڼې ئې ورې وي۔

**مرمر** :- (مر + مر) (ف ، اس ، جم) د کاڼي يو قسم چې اکثر تک سپين وي۔ خو ځينې نورو رنګونو کښې هم وي۔ عموماً سنګ مرمر بللے شي۔

**مرمري** :-(مر + م + ري) (ف ، تر ، صف) سنګ مرمر سره تعلق لرونکے ، سنګ مرمر ته منسوب۔د مرمر په شان ، سپين / ښکلې / ښائسته۔

**مرمري** :- (مر + م + رې) (اس ، مذ) جوار چې په کښې پې پېدا شي خو لا پاخۀ نۀ وي۔ د غنمو دانې چې وريتې کړے شي او په کښې ګوره يا شکره ګډه کړے شي۔ډېر خله ترې غونډاري هم جوړولے شي۔

**مرمرين** :- (مر + م + ري + ن) (ف،صف، مذ ،مو ـــ ه) ســـنګ مرمـــر غوندې۔

**مرمم** :- (م + رم + مم) (ع ، اس ،مف،مذ ،مو ـــ ه) مرمت شوے ، پيوند شوے۔سم کړے شوے۔

**مرموز** :-(مر + مو + ز) (ع ، اس مف ، مذ ،مو ـــ ه) په رمز کښې وئيلے شوے ، هغه خبره چې په اشاره کنايه کښې اوکړے شي۔

**مرنجان** :- (م + رن + جا + ن) (اس ، جم) يو قسم ازغے / اغزے دے چې اوبښان ئې خوري۔

**مرنده** :- (م + ر ن + ده) (اس ، مو ، ج ـــ دې) بند کوم چې د درياب يا د نهر په مخ کښې تړلے شي۔

**مرنده** :- (م + رن + ده) (صف) انحصار ، اختصاص لرنه۔

**مرنده** :- (م + رن + ده) (اس ، مو ، ج ـــ دې) هغه ښځه چې د دوؤ کسانو پرې جګړه وي او له دې کبله هغه د مېړۀ کولو نه منع کړے شوې وي۔ ناسته ، مروره ناسته ښځه ، چې محاوره کښې ورته بدنصيبه هم وائي۔

**مرنو** :- (م+ رن +ۀ) (اس،مذ،ج ـونه) د لوخې بار يا ګېډے۔

**مرنے** :- (مر + ر + نے) (اس ، مو) خرفه ، ورخاړے۔تکړه او بهادره ښځه۔ مذکر ئې ,,مرنے ،، دے۔

**مرواله** :- (مر + وا + له) (اس،مو ، ج ـــ لې) د يوې ونې نـوم دے بــان ۔ چې پــه عــربۍ کښې ورتـه شوع هم وائي۔ (زړه پانګه) ۔د پستې په شان پاڼې لري او هم د پستې په شان مېوه لري۔چې غوړ ترې ويستے شي۔دانو ته ئې په عربۍ کښې حب البان وائي۔

**مروت** :- (مر + وت) (اس ، مع) د پښتنو يوه لويه قبيله ده ۔د بېټ نيکۀ يا بيټني له اولاده دي۔لوهان هم د دويي قبيله ده۔اول دويي دغزني د غرونو په خوا شا کښې په کټه واز کښې اوسېدل ۔اوس د وزيرو محسودو سره په ګاونډ اوسي ۔د دويي دوه لوئې ډلې دي يوه په غرۀ کښې اوسېږي او دويمه ميداني علاقه کښې۔څکه ورته شګه مروت هم وائي۔نسلاً هم په دوه ؤ برخو وېشلې شوې دي ۔سپين مروت او تور مروت ۔يعنې سپين ګوندي او تور ګوندي ۔ د مروتو اهمې قبيلې دادي : درې پلارا ، موسیٰ خېل ، بهرام خېل ، پـه دويـې کښـې درې پـلارې شـګه مـروت دي ۔ ارام،احتياط۔

**مروت** :- (م + رو + وت) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــــ ونه) مېړه توب ،مردانګي ، بهادري ، ځوانمردي محاورتاً احسان ، لحاظ ، رعايت ، خاطر ۔

**مـروج** :-(م + رو + وج) (ع ، اس ، مـف ، مـذ ، مـو ـــ ه) رواج شـوے ، رواج ورکـړے شـوے ـجاري کـړے ، روان کـړے ۔ د رواج مطابق ، د معمول مطابق۔

**مـروج** :- (م + رو + وِج) (ع ، اس ، صف ، مـذ ، مـو ــــ ه) رواج ورکـوؤنکے ، جاري کوؤنکے ، لاړ ايستونکے ۔

**مروجه** :- (م + رو + وَ+جَ) د ,,مروج ،، تانيث دے ۔د ,,مروج ،، بـدل شـکل دے۔چې د مروج په ځاے (د مذکر په طور) استعمالېږي۔ لکه : مروجه قانون ، مروجه شرح۔

**مرور** :- (م + ر + ور) (صف ، مذ ، مو ــــ ه) خفه شوے ، ناراضه شوے۔

**مرور** :- (م + رو + ر) (ع ، اس ، مذ) تېرېدنه ، اوړېدنه۔

**مروری** :- (م+رو+رۍ) (اس ،مو) مشهور بوټے ،بابونه،بګړي ګل۔

**مروړ** :- (م + رو + ړ) (هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) تاؤ ، پېچ ، مخښل۔

**مروړل** :- (م + رو + ړل) (مص) مروړ ورکول ، تاوؤل ، پېچل ، تاؤ ورکول۔

**مروړنه** :- (م + رو + ړنَ) (حمص) تاوؤنه ، پېچنه ، تاؤ ورکونه۔

**مروړه** :- (م + رو + ړه) (اس ، مو،ج ـرې) د مشهورې مرغۍ نوم دے ـخاړه۔

**مروړه** :- (م + رو + ړه) (و ـــ مرهوټې) ۔

**مروړۀ** :- (م + رو+ ړ) (و ـــ مروړنه) ۔

**مرهوټي** :- (مر +هو + ټي) (اس ، ج) هغه مورې يا نرۍ دانې کومې چې د کومې حشرې (چينجي مينجي) په بدن ګرځېدلو سره پېدا کېږي ۔هغه دانې چې د ماشي يا کټملو يا وروږو د چيچلو په نتيجه کښې په بدن را اووځي ـچې ,,متاکه ،، ورته هم وئيلے شي۔

**مرۍ** :- (م + رۍ) (اس ، مو) د انسان د زنې لاندې تر بدنه پورې مخامخ غاړه

چې شا غړي ته ئې ځټ وئيلے شي. د امبل يا تسبو دانه. کله چې مرۍ وړه او نرۍ وي نو ورته مشکئه وئيلے شي.

**ـــــ ته پټکے اچول** :-

**ـــــ ته پړے اچول** :- دچا نه / څخه ډېر سخته مطالبه کول مثلاً په ډېره سخته خپل قرض غوښتل ، مجرم رانيول.

**مرېـړے** :- (م + رے + ړے)(و ــــ مرېــړے) پـه اوومـه ورځ خوشـخـويه . مرېړے د فرزند بويه (سرعت الاسلام په حواله زړه پانګه).

**مرېړے** :- (م + رے + ګے / ړے)(و ــــ مريزے)

**مرېشکۍ** :- (م + رې + ش + کۍ)(اس ، مو) يو برګ مارغهٔ دے چې اکثره د سيندونو په غاړه ليدے شي.

**مــــريض** :-(م + رې + ض)(ع ،اس،مـــذ ، ج ــــان) مـــرض والــــه ، ناروغه،ناجوړه ، بيمار.

**مريضه** :-(م + رې + ضه)(اس ، مو ، ج ــانې) د ,,مريض ،، مؤنث دے.

**مرېله** :- (م + رے + له)(اس، مو، ج ـــــلې) لوټ ، شوکه ، اولجه ، غنيمت ، نوبت ، وار ، ځل.

**مريم** :- (مر + يم)(اس ، مع) د حضرت عيسٰی عليه السلام د مـور بي بي نوم. زنانه نوم. (په پښتو کښې اکثره د ميم زور سره يعنې مريمه وئيلے شي).

**مرينډۍ** :- (م + رې + ن + ډۍ)(اس ، مو) اوچه غښتلے شوې ګياه. د ګياه د ګل ګېډۍ.

**مرينه** :- (م + رې + ن)(هـ ،پ،اس ،مو، ج ـــنې) يو خاص قسم ورېن تهوکے (اصلاً ,,ترينو ،، دے. د خام قسمه ګډې وډې ورې څخه جوړلے شي).

**مرېيل** :- (م + رې + يل)(مص) کنګالول. اوبهٔ ورتېرول. د لوښو کنګالول.

**مړ** :- (مړ)(صف ، مذ ، مو ـــــه) بې ساه ، د فارسي مرده.

**مړ** :- (م + ړ) د ,,مړو ،، مخفف دے. عموماً د لاحقې په طور استعمالېږي. لکه ,,نامړ ،، ,,نامړه ،،.

**مړام** :- (م + ړا + م)(صف ، مـذ ، مـو ــــ ه) سست ، کاهل ، سست پست . داسې اوبهٔ چې ډېرې غلې غلې بهېږي. مړاوے ، راخوړند. لکه فلانے مړام غوږونه له هوټل څخه را ووت.

**ـــــ والے** :- (ـــــ وا + لے)(پ ،تر،اس،مذ)(و ــ مړام توب).

**مــړام جـا** :- (م + ړا + م + جـا)(صـف) ډېــر کـمـزورے ، ناتوانـه ، د مـړي کمـزورے . نـرے نـروچکے . پـټ رستم ، داسې سړے چې پـه ظـاهره هېڅکاره ښکاري خو کوم غټ کار وکړي.

**مړامېدل** :- (م + ړا + مې + دل)(مص) مړام کېدل ، مستېدل ، کاهل کېدل مانده کېدل ، کمزورے کېدل ، مړاوي کېدل ، پژمرده کېدل.

**مړانګ شا** :- (م + ړا + نګ + شا)(اس ، مو) د يو غرئيز بوټي نوم دے.

**مړانه** :- (م + ړا + نه)(اس ، مذ ، ج ــــــنې) ځوانمردي ، مېړانه ، بهادري ، شجاعت ، تورزني ، جمع :- مړانې.

**مړاو** :- (م + ړا + و)(صف) اوګورئ مړام.

**مړاوے** :- (م + ړا + وے)(صف) پژمرده ، د تازه ضد ، هغه څهٔ چې تازګي په کښې نهٔ وي.

**مړ پړ** :- (مړ + پړ)(پ تر ، صف ، مذ،ج ــــهٔ ، هٔ) ډېر مړاوے ، د مړهٔ پـه شان ، پژمرده ، مړځپړ هم وئيلے شي.

**مړتون** :- (مړ + تو + ن)(پ تر ، اس ، مـذ ، ج ــــونه) قبر،ګور،ګورستان ، قبرستان ، هديره.

**مړتک** :- (مړ + تک)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــه) د ګنډلو داسې ټکونه چې سست پست وي. سست پست ګنډ.

**مړجوړا** :-(مړ + جو + ړا)(پ تر ، صف ، مذ ، ج ـــګان) نامړد ، هيجړا ، منجوړا.

**مړجونے** :- (مړ + جو + نے)(پ تر، صف ،مذ، ج ـــړي) مړاوے ، پژمرده ، سست پست.

**مړځپن** :- (مړ + ځ + پن)(پ تر ، صف ، مذ ،مو ـــــه) اوګورئ مړپړ.

**مړځپے** :-(مړ + ځ + پے)(و ــــ مړځپن).

**مړخندي** :- (مړ + خن + دي)(پ تر، صف ،مذ، ج ـــــدي) مړه مړه خندا ، پټه خندا ، مسېدنه ، موسا ، موسکا.

زنده سر په مرګي حال په کښې ژوندے وو
هـــر خندے په کښې د زړګي مړخندے وو (شاه و ګدا)

**مړخنـدے** :- (مـړ + خـن + دے)(اس ، مـذ ، ج ـــــدي) مـړه مـړه خنـدا کوونکے ، موسېدونکے ، تبسم کوونکے ، د شونډو په سر خندا کوونکے.

**مړخوبه** :- (مړ + خو + به) صف په غرق خوب کښې ، په ژور خوب کښې.

**مړخوبے** :- (مړ + خو + بے)(اسم ،مذ ، ج ـــبي) غرق خوب والـه ، ډوب خوب کوونکے. هغه چې خوب ئې ډېر ژور وي. (چې اودهٔ شي بيـا د ځانه نهٔ خبرېږي) ډېر خوبي.

**مړخوړي** :-(مړ + خو + ړي)(اس ، مو) د ,,سل ،، مرض.

**مړخوړے** :-(مړ + خو + ړے)(پ تر، اس ، مذ ،ج ـــړي) د ,,سل ،، په رنځ رنځور.

**مړخلے** :- (مړ + خ + لے)(پ تر ، مف ، مذ ،ج ـــلي) د مړي غونډې څُولې والـه ، وارخطا ترهېدلے.

**مړد** :- (مړ + د)(اس،مذ،ج ـــــان)(و ـــــ ,,مرد ،،).

**مــړدک** :- (مـړ + دک)(و ـــــ ,,مـردک ،،) د ټوپـک ګـولـۍ د هلکـانو د لوبـو ګولۍ. (د ,,مړد ،، د لاندې نوټ وګورئ).

**مړدي** :- (مړ + دي)(و ـــــ ,,مردي).

**مــړز** :- (م + ړز)(اس ، مـذ ، ج ـــــان) د مشهور مارغهٔ نوم .بتېر هـم ورتـه وائي. د زرک، تارو غونډې دغو نه وړوکے مارغهٔ چې د تيتر غونډې وي. خو په موټي کښې ځائېږي. زمونږ په سيمه ئې د غنمو يا باجرې جوارو پټو کښې رانيسي. بتېر بازان ئې جنګوي هم او خوړلے هم شي.

**مړزګے** :- (م + ړ+ز+ګے) د ,,مړزګه ،، جمع ده. د ,,مړزګه ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ـــــ غوښه** :- د مانده ځاروي غوښه. مانده غوښه.

**مړزوي** :- (م + ړ + ز + وي)(اس ، مو ، ج) مني ، نطفه.

**مړزه** :- (م + ړ + ز)(اس،مو،ج ـزې) د ,,مړز ،، تانيث دے.

**مــړ سترګے** :- (م +ړ+ س + ت + ر + ګے)(پ تـر ، صـف) هغـه سـړے چې سترګې ئې مړې مړې وي. نيم بازے سترګے.

**مړستون** :- (م + ړ + س + تو + ن)(پ تر ، اس ، ظر) د مړي ځاے ، قبر ، لحد ، د سپوږمۍ شپول ، مړېستون.

**مړشومه** :- (م + ړ+شو+م)(پ تر،اس،مو،ج ـــــمې) مړې پسې پـه هغـه شپـه خېرات ، د مړي د اولې شپې خېرات.

**ـــــ کول** :- په مړي پسې د شپې خېرات کول.

**ـــــ شوے** :- (ـــــ ش + وے)(و ـــــ مړ شوے).

**مړ شوے** :- (م + ړ + ش + وے)(صف تر ، اس مف) هغه چې مړ وي. مړے ، وفات شوے.

**مړښت** :- (م + ړ + خ/ش + ت)(حمص) مړېدنه، سېري ، قناعت ، مړ سترګتوب ، صبر.

**مړغکۍ** :- (م + ړ + غ + ک + ۍ)(اس مو) مړغکۍ، يو قسم پسته ګياه ده. چې په جماعتونو وغېره کښې د فرش په طور خوړولے شي.

**مړغون** :- (م + ړ + غو + ن)(اس ، مذ) مړاوے والے ، مړاوے توب ، پژمردګي

، مرغونجا ـ

**مړغونجا** :- (م + ړ + غو + ن + جا ) ـ

**مړغونجے** :-(ــــجے )(اس،مذ ، جـــــګان) سست پست ، مړاوے، پژمرده، مردني ، پژمردګي (مړغونچا هم وائي ) ـ

**مړغونے** :- (م + ړ + غو +نے )(اس ، مذ ، جـــــني) حنظل، يو قسم دارو دي ـ

**مړغېجن** :- (م + ړ + غې + ج + ن )(صف ،مذ ،موــــــه ) مړاوے شوے ، پژمرده ـ مړغون ،مرغونجا ـ هغه سړے چې سست پست وي ـ چې د ژوند تازګي او جوش په کښې نۀ وي ـ

**مړغېچن** :- (م + ړ + غې + چ + ن )(وــــ مړغېجن ) ـ

**مړغېژن** :- (م + ړ + غې + ژ + ن )(وــــ مړغېجن ) ـ

**مړغېشے** :- (م + ړ + غې + شے )(اس ، مذ ، جـــــشي) يو قسم بوټے دے ـ چا جاروګان ترې جوړولے شي ـ

**مړکندي** :- (م + ړ + ک +ن + دي )(اس ، مو) مړاوے والے ، پژمردګي ، مردني ـ نيم جان ، مرغونجے ـ

**مړکونه** :- (م + ړ + ک + و + ن )(حمص) وجنه ، وژنه ، قتلونه ، د اور ، ډيوې وغيره خاموشه کونه ـ(اُر ـــ بُجهانا ) ـ

**مړګے** :- (م + ړ + ګے )(اس ، مذ ، جـــــان) سړے ، مرد ، تکړه غښتلے سړے ـ يو اختر يو شېرعلي ، دواړه مضبوط مړګيان دي (غاړه ) ـ

**مړل** :- (م + ړ + ل )(مص) مړکېدل ، وفات مونډل ، حق رسېدل ـ (نيم مستعمل مصدر دے ـ ټول فعلونه ترې نۀ جوړېږي ) وـــــ ,, مړ ،، ـ

**مړمزک** :- (م + ړ + م + ز + ک )(اس ، مذ ) د سپوانو يو قسم دے ـ چې رنګ ئې شين وي ـ خو ډېر خوږ وي ـ

**مړمند** :- (مړ + من + د )(اس ، مذ ،جــــــونه ) د ,, مړوند ،، دپاره په بله لهجه کښې وئيلے شي ـ يعني (مړ م ، وند ) د ,, مند ،، او ,,وند ،، خبره ده ـ چې مختلفو لهجو کښې مختلف وئيلے شي ـ

**مړمونجے** :- (مړ + مو + ن + جے )(وــــ مړغونجے ) ـ

**مړن توب** :- (م + ړن + تو + ب )(پ تر ،اس ، صف ، مذ ) مړانه ، بهادري ، تورزني ـ مېړن والے شجاعت ـ

د مــــزريو مــــړن توب په لښکر نۀ وي
مټ ئې هر کله يواځې په خپل ځان وي (خوشحال)

**مړنے** :- (م + ړ + نے )(صف ، مذ ، جــــــني) مړانه کوونکے ، بهادر ، شجاع ، زړۀ ور ، تورزن ، دلاور ـ

مړني دي چې ياد ېږي
په سندرو ، هم په وير (خوشحال)

تکړه ، کار ايستونکے ـ

**مړو** :- (م + ړو ) ماړۀ (د مور جمع) په حالت مفعوليه يا د ,,م ،، په علامت (v ) سکوتي سره دا د مړ جمع او حالت مفعوليه جوړېږي ـ

**مړوب** :- (م + ړو + ب )(اس ، مذ ) ښځۀ ډېرې يا ډکې اوبۀ (ورکول) خړوب ( کول يا کېدل ) مړوبول او مړوبېدل ئې نور حالتونه دي ـ

**مړوت** :- (مړ + وت )(پ تر ،اسم ) مېړه توب ، مړنتوب ـ لکه :- تۀ هم ځان ته مېړۀ وائې ورشه د خلکو مړوت وګوره چې -----

**مړوچ** :- (م + ړو + چ )(صف ، مذ ،موــــــه ) طاقتور ، قوي ، قوتناک ، مړوچے يا مړوچه هم وئيلے شي ـ

**مړوخوا** :- (م + ړو + خ + وا )(اس ، مو ، ظ ) د قطب طرف ، شمال خوا ، دهديرې طرف ، مقبرې خوا ـ

**مړوس** :- (م + ړو + س )(تابع مهمل ) د ,, ېروس ،، سره د مهمل په توګه راځي ـ

**مړوسه** :- (م + ړو + سه )(اس ، مو ، جـــــسې ) د کورونو په ديوال کښې ورې ورې طاقچې چې دډول دپاره جوړولے شي ـ

**مړوښه** :- (م + ړو + ښه )(اس ، مو ، جــــــښې ) د شتۀ مېړۀ ښځه ـ هغه ښځه چې خاوند لري ـ

**مړوښي** :- (م + ړو + ښي )(پ تر ، اس ، مو ) د سړي / نر او ښځې د ښځې خاوند غوندې تعلق ـ بدکاري / زنا ـ

**مړول** :- (م + ړ + ؤل )(مص ) خوراک څکاک ورکول ـ په خوراک د چا ګېډه ډکول، په خوراک دچا لوږه ختمول ، د ضرورت څيز چالـه ښۀ ډېر مقدار کښې ورکول ـ څوک دومره خفه کول چې ترې زړۀ تور شي ـ چې د ,,م ،، حرت (ء يا v ) شي نو بيا په بنوچي لهجه کښې وژلو ته وائي ـ مړول ـ

**مړولونے** :- (مړ + و + لو + نے )(پ تر ، اس، مذ ، جــــــکي ) مړولونے، مړے لمبوونکے ، مړي ته غسل ورکوونکے ـ

**مړوند** :- (مړ + ون + د )(اس ، مذ ، جــــــونه ) د لاس د پنجې او د لېچې تر مېنځه حصه ، (اُر : کلائی ) ـ

**مړونډۍ** :- (مړ + ون + ډۍ )(وــــــ مرونډۍ ) ـ

**مړونډۍ** :- (مړ + ون + ډۍ )(اس ، مو ) يو قسم بوټے دے چې د دارو په توګه پکارولے شي ـ پنج انګشت و پنجۀ مريم ـ ,, مرونډۍ ،، هم اوګورئ ـ

**مړونه** :- (م + ړو + نَه )(اسم صف ) د مېړۀ جمع ده ـ خاوندان ، څښتنان ـ

**مړونه** :- (م + ړ + ؤنَه )(اس ، مذ ، ج ) مړول ، په خېټه مړول مالداره کول ـ

**مړونه** :- (م + ړ + ؤ + نَه )(حمص ) د غير مستعمل مصدر ,, مرول ،، حاصل مصدر، مړ کونه ، وژنه ـ

**مړونے** :- (م + ړو + نے )(اس ، مذ ،جــــــني) مړکېدونکے ، مړ کېدو ته نزدې ، قريب المرګ ـ

**مړوونکے** :- (م + ړ + وو + ن + کے )(پ تر، اس،فا،جــــکي) مړؤلو والـه ، رزق ورکولو واله ـ

**مړۀ** :- (م + ړۀ )(اس ، صف ، مذ، ج) د ,, مړ ،، جمع ده ـ مردګان،مړي،ساه وتلي ـ

**مړه** :- (م + ړه )(صف،مو،جــــړې) د ,, مړ ،، مؤنث دے ـ ساه وتلې ـ

**زومـــړے** :- (زو + م + ړے )(اس ،صـف، واحـد مـذ )د ,, ژوے مـردے ،، وئيندے صورت دے ـ

**مړه لونے** :- (م + ړ + لو + نے ) نري رنځے د تپې بې مريض ـ

**مړه** :- (م + ړه )(صف ، مو،جــــړے ) مړه يا مړده چې خج په ,, م ،، وي ـ نو معنٰی ئې مرده ده ـ دا ټکے ځينې خلق مخاطب ته د ,, سړيه ،، په ځاے وائي او دغلته ئې مؤنث ,, مړې ،، يا ,,مړدې،، وي ـ که خج ئې په ,, ړه ،، وي نو بيا د هغې مادې يا ښځې ته وائي چې په خېټه مړه وي ـ لکه ,, مړه ښځه يا ,,مړه مېښه ،، يا بل څۀ ـ

**مړه خوا** :- (م + ړه+ خوا )(پ تر ، صف ) هغه کس چې په خوي موړ وي ـ موړ سترګے / سترګې د حرص يا لالچې متضاد دے ـ صبرناک بنده ـ

**مړۀ** :- (م + ړۀ )(اس ، مذ ) مېړۀ ، خاوند ، څښتن ـ

**مړه** :- (م + ړ )(اس ، مذ ) شانګے ،کمبل، شال (پ ق ) ـ

**مړهکه** :- (مړ + هه +که )(اس ، مو ) د دق سل مرض ، مړيکه ، نرے رنځ ، د تپې بې مرض ـ

**مړهکے** :- (مړ + ه + کے )(پ تر، اس ، مذ ، جـــکي) د دق سل يا د تپې بې مريض ، د نري رنځ مريض ـ

**مړهۍ تبه** :- (مړ + هۍ + تۀ + به )(پ تر، اس ، مو، جـــــبې) ددق سل تبه ، د نري رنځ تبه ، د تپې بې تبه ، مړهکه ـ

**مړی** :- (م + ړی )(اس مو ) نمړی، نوړی، ګوله ،لقمه ، نواله ، ډوډۍ، دعوت ـ

**مړي** :- (م + ړي) د ,,مړے ،، جمع ده. نو واحد وي او مطلب ترې ,,مړے،، وي. لکه : د مړي لمبولو نه پس....

**مړے** :- (م + ړے)(اس ، مذ ، ج ــــ ړي) يو غټ لرګے چې د ژرندې د څرخ تر لاندې لګولے شوے وي.

**مُړے** :- (م + ړے)(اس ، مذ ، ج ــــ ړي) ګډ ، مېږ يا مږ.

**مړې** :- (م + ړې) د ,,مړه ،، جمع ده.

**مړے** :- (م + ړے)(اس، مذ، ج ــ ړي) مرده ، بې ساه ، لاش.

**مړے ژوندے** :- غم ښادي ، کُل وېغي محاورتاً د غم او ښادۍ په موقع خپلو خپلوانو يا ګاونډيانو د کلي چم خلقو سره خپلو کښې تګ راتګ .

**مړېژن** :- (م + ړې + ژن)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) مــــړ ژونـــدے، مرګي حال ، مرګ ته نزدې.

لکه مار چې مړېژن شي پېچ و تاب کا
هسې حـــال وي چې د ګورم د طرې ته (ګګيانړے)

**مړېدل** :- (م + ړې + دل)(مص) لوږه ورکېدل ، د خېټې وقتي ضروريات پوره کېدل. محاورتاً مالدار يا شتهٔ من کېدل.

**مړېدنه** :- (م + ړې + د + ن)(حمص) لوږه ختمېدنه ، د خېټې وقتي ضرورت پوره کېدنه ، شته مند کېدنه يا مالداره کېدنه.

**مړېستان** :- (م + ړې + س + تا + ن)(و ــــ مړېستون).

**مړېســتون** :- (م + ړې + س+تـو+ن)(پ تـر ،اس، مـذ ،ج ــــ ونـه) هـديره ، قبرستان ، مقبره ، مړېستون.

**مړيکه** :- (م + ړي + کَه)(و ــــ مړهکه).

**مړينه** :- (م + ړي + نَه)(اس ، مو ، ج ــــ نې) مړکېدنه ، مرګ ، وفات.

**مړيے** :- (مړ + يے)(اس ، مذ) د ګډ اندامونه يا ټکړې ،لکه وازده غوښه ، لم وغېره.

**مز** :- (مُز)(اس ، مذ) د ژرنده ګري حق ، دغه د ,,م،، په (اۀ) حرکت سره ,,مز،، هم وئيلے شي.

**مزاج** :- (م + زا + ج)(ع ، اس،مذ ، ج ــــ ونه) طبيعت ، طبع ، خټه ، سرشت ، عادت ، خصلت ، خوئي، کبر ، غرور ، نازنخره ، کيځ ، (اصلاً ددې لفظ معنٰی ګډون يا امېزش دے .د طبيبانو په اصطلاح کښې د څلورو عناصرو په ګډون پېدا کېدونکے کېفيت دے).

اوبۀ ستر ګو لـــــره لاړې اور دزړه شوې
ځوک به څۀ رنګه ژوندون په دا مزاج کا (خوشحال)

**ــــ شناسي** :- (ــــ ش + نا + سي)(عف، تر،اس ،مو) په مزاج پوهېدنه ، په طبيعت پوهېدنه.

**مزاجاً** :- (م+زا+جاً)(ع،تف) د مزاج دلحاظه ، د طبيعت له رويه.

**مزاح**:- (م +زا + ح)(ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) ټوقه ، وشته، خوش طبعي ، ټقاله.

**مزاحف** :- (م +زا+ حف)(ع ، اس ، مف ، مذ ، ج ــ ات) پرېوتے ، د اصل څخه لرې. دعروض دعلم اصطلاح ده .هغې رکن ته وائي چې سالم (ثابت) نۀ وي بلکې څۀ نا څۀ بدلون په کښې راغلے وي.زحاف واله رکن.

**مــزاحم** :- (م +زا+ حـم)(ع،صـف،مذ ،مو ــــ ه) مزاحمـت کـوونکے ، لاره بندوونکے .خنډ کېدونکے ، حائل ، حازح.

**مزاحمت** :- (م + زا + ح + مت)(ع ،اس،مذ ، ج ــــ ونه) بنديز،خنډ .

**مزاحي** :-(م + زا + حي)(عف،تر،اس ،مو) مزاح سره متعلق ، ټوقې ټقالې ته منسوب

**مزاحيـه**:- (م + زا + حـي + ي)(ع ،اس ، مـو،ج ــــ يـے) ټـوقې ټقـالې والـه ، وشتيځه .

**مـزاد** :- (م +زا + د)(ع ، اس ، مـذ ، ج ــــ ونـه) توشـهدان، د سفـر د توښې د کښېښودلو کڅوړه يا بوجۍ يا بکس يا بېګ وغېره.

**مزادګۍ** :- (م + زا + د+ ګۍ) د ,,مزادګے،، تانيث.

**مزادګے** :- (م + زا +د + ګے)(عپ ، تر ، اس ، مذ ، ج ــ ګي) وړوکے توشه دان ، دوه کليزه يا دوه کلنے اوښ.

**مــزار** :- (م +زا + ر)(اس ، مـذ ، ج ــــ ونـه / ات) د زيـارت کولـو ځـا ے ، زيارت ګاه، قبر،ګور، د کوم عزتمند يا بزرګ سړي قبر.

**مــزارع** :- (مُ+زا + رع)(ع ، اس،مـذ ، ج ــــ ان / يـن) زراعـت کـوونکے ، زميندار، دهقان کرکيله يا کرکښت کوونکے .کاشت کار د ,,مزاع،، جمع ده.

**مزارعــت** :-(م + زا + ر + ع + ت)(ع، اس ، مـذ )د کـر کرونـدې کـار ، زميندارې ، کاشتکارې.

**مزاميـر** :- (م + زا + مـي + ر)(ع ، اس،ج) د ,,مزمـار،، جمـع ده .شـپېلۍ، د مطربانو سازونه. د ,,مزمور،، جمع ده.

**مزاوجـت**:- (م +زا + و + جـت)(ع ، اس ، مـذ ) زوج کېدنـه ، ښـځه يـا خاونـد جوړېدنه وادۀ.

**مزاولت** :- (م + زا + و ، لت)(ع ، اس ، مذ) يو کار مسلسل کول ، مشق کونه ، سعي کوښښ ، د خواهش د پوره کولو کوښښ.

**مزايا** :- (م + زا + يا)(ع ، اس ، ج) د ,,مزيت،، جمع ده.

**مزايده** :- (م + زا + ي + ده)(ع ،اس ، مو، ج ــــ دې) نيلام ، ليلام ، د نيلام په ذريعه خرڅونه.

**مزبلـه** :-(م + ب + لـه)(ع ، اس ، مـو ، ج ــ لـې) ډېران، د ګندګۍ د جمع کولـو ځا ے.

**مزبـور** :- (مـز + بـو + ر)(ع ، صـف ، مـذ ، مـو ــــ ه) بـره ليـکلے شـوے ، ذکـر شوے ، مذکوره بالا.

**مزبوره** :- (مز + بو + ره) د ,,مذبور،، تانيث دے.

**مزج** :- (مز + ج) (ع ، اس) سره رايو ځا ے کول.سره ګډول ، سره ګډوډول. خلط ملط کول .

**مزجات** :- (مز + جا + ت)(ع ، اس) لږ،يو پوټے،حقير،ادنٰی ، کم قيمته.

**مزد** :- (مز + د)(ف ، اس ،مذ ، ج ــــ ونه) مزدوري،اجرت ، معاوضه، طلب.

زۀ د مزد مستحق نۀ يم د حق دوسته
تۀ ما مه شړه له خپـــله پـــاکه کويه (حافظ)

**مـزدک** :- (مز + دک)(اس ،مع) د ايران د ساسانيانو د زمانې يو سړے چې يو نوے مذهب ئې راويستلے وو.ډېر فصيح او بليغ سړے وو. دۀ زر ، زن او زمکه درې واړه قومي ملکيت ګرځولي وو.د قباد په زمانه کښې وو.د قباد د زوے نوشېروان دلاسه اووژلے شو .جماعت ، مسجد ، چار ديواري ، سينه پناهي .

**مزدکي** :- (مز + د + کي) (صف) د ,,مزدک،، مذهب منونکے .

**مزدکے** :- (مز + د + کے) (اس ،مذ ، ج ــــ کي) چوتتره ، ډبه ، ډپه.

**مزدکيت** :- (مز + د + کي + يت)(ع ، تر ، اس ، مذ ) د مزدک د مذهب عقيده چې ننني اشتراکيت ته نزدې ده.

**مزدلفه** :- (مز + دل + فه)(ع ، اس ، مع) په حجاز کښې مکې سره نزدې د عرفات او د منٰی نومې ځايونو په مېنځ کښې يو ځا ے دے.

**مزدوره** :- (مز + دو + ره)(اس، مو، ج ــــ انې) د ,,مزدور،، مؤنث دے.

**مزدوري** :- (مز + دو + ري)(اس ، مو) مزد ، د کار اجرت ، د کار معاوضه ، محنت ، خواري.

**مزروع** :- (مز+رو +ع)(ع ، صف، مذ ، مو- ه) کرلے شوے پټے يا زمکه ، فصل

**مزرعه** :- (مز + ر + ع)(ع ، مو ، هغه زمکه چې کر کرونده پرې کېږي، د کروندې پټې يا پټي ، فارم ، مزروعي زمکه.

**مزرکټې** :- (م + زو + ک + ټې)(اس ، مذ ، ج ـ ټي) د زمري بچې ، بهادر ، زړه ور

**مزروعي** :- (مز + رو + عي)(ع ، صف) هغه زمکه چې د کر کروندې قابله وي ـ د زراعت زمکه.

**مزري** :- (م+ ز +ري) زمرې،ازمرې يا مزرې ، د ,, مزرې ،، جمع ده.

**مـزرې** :- (م + ز + رې)(اس ، مـذ ، ج ـ ري) مېـزرې ، مشـهور بـوټې چې د کجورې په شان پاڼې لري. رسۍ، بوږ او پوزکي وغېره ترې جوړولې شي.د زميدارۍ په نورو څيزونو جوړولو کښې هم پکار راځي .لکه بوره ، پنډ پرې او نور.

**مزرينه** :- (مز + ري + نه)(صف ، مو ، ج ــــ نې) د ميزرې نه جوړ شوې .لکه :- مزرينه ټوپۍ.

**مزغاړي** :- (مز + غا + ړي)(اس ، مذ ، ج ــــ ړي) وړه کڅوړه ، چې په خولۀ کښې ئې د بندولو دپاره مزې اچولې شوې وي او پيسې ټکې وغېره په کښې کښېښودې شي.

**مزغې** :- (مز + غې)(اس ، مذ ، ج ــــ غي) حاشيه ، مغزې ، مغزي ، ددوهٔ ټوکو په مېنځ کښې ګنډلې شوې نرۍ برغه پټۍ.

**مزګټو** :- (مز + ګ + ټو)(اس ، مذ) هغه لوې خاورين لوښې چې ژرندې په خوا کښې په زمکــه کښې ښخه کړې شوې وي او د ژرندې د مزدورۍ غله (جوار ، غنم) په کښې جمع کولې شي.

**مزل** :- (م + زل)(اس، مذ، ج ــــ ونه) فاصله ، په مخکښې پرته لار.

**مزمار** :- (مـز + مـا + ر)(ع ، اس ، مـذ ، ج ـــــــ ونـه / مزيـر) شـپېلۍ ، نـې ، د شپېلۍ د انداز د غږولو ساز.

ښۀ اواز که د بربط د موسيقار دې
يا د چنګ د معني يا د مزمار دې (خوشحال)

**مزمزه** :- (مز + م + زه)(ف ، اس ، مو ، ج ــــــ زې) څکنه ، د مـالګې مزې د معلومولو دپاره لږ شان څيز په ژبه کښېښودل.

**مزمل** :- (م + زم + مل)(ع ،صف،مذ) په جامو کښې نغښتې ، په جامو کښې پټ. د قرآن پاک د يو سورة نوم.

**مزمن** :- (م + زم + من)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) زوړ ، پخوانې ، د ډېر وخت ، تر ډېره وخته پاتې کېدونکې.

**مزمور** :- (مـز + مـو + ر)(ع ، اس ، مـذ ، ج ـــ ونـه / مزاميـر) دعائيـه نظـم ، سندره ، مذهبي نظم ثنائيه.(لکه : د زبور مزامير).

**مزو** :- (م + زو) په حالت مفعول کښې د ,,مزي،، جمع ده.په همدغـه مفعول کښې د ,, مزې،، جمع ده.

**مزه** :- (م + ز)(ع ، مو ، ج ــــــ زې) خوند ، لذت ، ذائقه ، لطف.

بل کام ليد نۀ شي چې جذب کا
لـــــه دې خـــوان مـــزه عـاجل (سعيد خټک)

**مزي** :- (م + زي) د ,, مزه ،، جمع ده.

**مزې** :- (م + زې)(اس ، مذ ، ج ـــ زي) غښتلې شوې مضبوط لږ غټ تار ـ د ليندې ژۍ.

**مزيت** :- (م + زي + يت)(ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) زياتې ، زياتوالې ، افزوني ، فوقيت ، بروالې ، لکه : علم په دولت مزيت لري.

**مزيـد** :- (م + زي + د)(ع ، صف ، مـذ ، مـو ـــــ ه) نـور ، زيـاتي ، زيـات ، اضافي لکه : مزيد معلومات.

**مزين** :- (م + زي + ين)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) زينت ورکړې شوې ، ښائسته کړې شوې ، اراسته کړې ، اراسته ، زينت واله.

**مـږ** :- (مـږ)(پ ، اس ، مـذ ، ج ـ مږونـه) ګڼورې،ګڼډ ، چې د پستي لهجې پښتانۀ ئې ,,مږ،، يا ,, مېږ ،، هم بولي.

**مږدک** :- (مږ + د ک)(و ــــــ مزدک).

**مږده** :- (مږ + ده)(ف ، اس،مو،ج ـ دې) خوشخبري ، زېرې.

**مږک** :- (م + ږک)(و ــــــ منږک).

**مږکـورې** :- (م + ږ + کـو +رې)(اس، مـذ،ج ـــــ ري) د ,, مـږک ،، تصـغير دې. (و ــــــ منږکورې).

**مږکه** :- (م + ږ + که)(اس ، مو ، ج ــــــ کې) منږک ، مُږه.

**مږګان** :- (مُږ + ګا + ن)(ف ، اس ، ج) د ,, مُږ ،، جمع ده.بانړۀ.

**مـړل** :- (م + ړل)(مص) مُښـل ، يـو څيـز د بـل سره مـروړل ، وهـل يـا جنګـول ،لګول.دا دواړه مصدرونه يعني مړل او مښل د فعلونو په جوړولو کښې يو ځاې کار کوي).

د دنيـــا دپـــاره څـــو ملکــــونه مــــړي
د خپل پلار په زيارت هې چېرې نۀ درومي (ګلدسته)

**مـړور** :- (م + ړو + ر)(اس ، مـو ، ج ـــــ يـانې / ړېنـدې) نـړور / اينـړور ، د زوې ښځه

**مـړوې** :- (مـړ + وې)(اس ، مـذ ،ج ـ وي) مـوړې ، چې جنوبي پښتـونخوا کښې خاص کر مروت ئې ,,مړواې،، بولي.

**مړېمه** :- (م + ړې + مه)(اس ، مو ، ج ــــــ مې) واريځـه مړه ، هغـه مړه چې په خاص وخت د نر ضرورت منده وي.

**مړيه** :- (مړ + يه) (اس ، مو) يو قسم بوټې دې .چې د وړو د دستونو په مرض کښې پکارولې شي.

**مــس** :- (م + س)(ع ، اس) څۀ څيـز لـه ګـوتې ور وړل ، درک لاس جنګـول يـا لګول. دوه اندامونه يا نور څيزونه سره لګول.

**مــس** :- (مــس)(اسم ، جم) يو قـدرتي عنصر دې .د دهـات ددغـه قسم نـه دکورونو د استعمال لوښي دېګچي ، دېګونه او نور څيزونه جوړولې شي. چې مس مسونه ورته وئيلې شي .د بجلۍ تار يا ټيليفون تارونه ترې هم جوړولې شي .د نورو عناصرو يا قدرتي توکو په مقابله کښـې د تـانبې تـار ښۀ کار کوي.

(Miss) ته هم وئيلې شي .چې معنٰی ئې ناوادۀ کړې پېغله جينۍ يا ښځه جوړېږي.چې مطلب ترې ,, بي بي ،، وي.ددغې مقابله کښـې د وادۀ کړې ښځې د نوم نه مخکښې ,,مسز،، (Mrs) راځي چې مطلب ترې ,,بېګم،، وي .عمومـاً د سـکول اسـتاذې تــه ,,مـس،، وئيـلې شـي .(Mis) مـس غلط،خطا ، نامناسب يا ناموزون ته هم وئيلې شي.

**مسا** :- (م + سا)(ع ، اس ، ظر) مابنام.

مخ دې ورځ زلفې دې شپه دي
پــــه سبـــاګو ، پـــه مساګو!! (خوشحال)

د (م) د (ـُـ) په حالت کښې يعني (مُسا) بې اوازه د نيمې خولې خندا تـه هم وائي.

**مسابقت** :- (م+ سا + ب + قت)(ع ، اس ، مذ) مقابلـه ، مسـابقه يـو بـل نـه د وړاندې کېدلو کوښښ کول.

**مسابقه** :- (م + سا + ب + قَ)(ع ، اس ، مو، ج ــــ قې / ات) د يـو بـل نـه سبقت وړنه ، د يو بل نه وړاندې کېدنه.مسابقت ، د مقابلې څغل.

**دمنډې ـــ** :- (د + م +ن+ډ ـــ) د تېزې منډې وهلو مقابله ، ربس.

**مسابقاتي** :- (م + سا + ب + قا + تي)(ع ، صف) سابقې سره تعلق لـرونکې ، د يو بل نه د وړاندې کېدلو ته منسوب يا مقابلې ته منسوب.

**مساجد** :- (م + سا + جد)(ع ، اس ، ج) د ,, مسجد ،، جمع ده .جماعتونه .

جوماتونه ، فرد کونه.

**مساح** :- (مس + سا + ح)(ع ، اس ، فا ،مذ ، ج ـــ ان) کچ گر ، زمکه ناپ کوونکے ، ناپ کچ کوونکے.

**مساحت** :- (م + سا + حت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه)کچ کونه ، د زمکې پيمائش، د رياضي دعلم يو څانگه چې په کښې د زمکې د کچ په حقله بحث کولے شي.

**مساحه** :-(م + سا + حه)(و ـــ مساحت)مساحي : (مس+سا+حي)(عف تر،اس، مو) کچ گري ، پيمائش.

**مساس** :- (م + سا + س)(ع ، اس ، مذ) مس کونه ، گوتې يا لاس وروړنه . بدن لگونه.د شهوت راولاړولو دپاره د ښځې د بدن مښنه . کور والے ، جماع.

**مساعد** :- (م + سا + عد)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) موافق ، معاون ، مددگار ، سازگار.

**مساعي** :- (م + سا + عي)(ع ، اس ، ج) سعي کانې ، کوښښونه ، منډې ترړې ، هڅې.

**مسافت** :- (م + سا + فت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ات) فاصله ، لرې والے .د دوؤ ځايونو تر مېنځه لار.

**مسافر** :-(مُ + سا + فر)(ع ، اس ، مذ ،ج ـــ ان / ين) سفر کوونکے ، په لاره تلونکے ، لاروے ، دکوز کلي يا وطن نه په بل کلي ، وطن مېشتهٔ کس . هغه کس چې د خپل کور نه ۴۸ ميله لرې لاړ شي .صرف څوارلسو ورځو شپو دپاره نو دغه کس شرعاً مسافر گڼلے شي .روژه پرې نهٔ وي او مونځ کښې به قصر کوي.

**مسافرانه** :- (م+سا+ف+را+ن)(عف،تر،تف) د مسافر غوندې.

**مسافر خانه** :- (م + سا + فر + خا + نه)(ف ،ت ، اسم ، ظ ، مو)د مسافرو د اوسېدلو يا قيام کولو ځاے .سرائې.

**مسافرت** :- (م + سا + ف + رت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) مسافري.

**مسافره** :- (م + سا + ف + ره)(اس ، مو،ج ـــ رې / انې) د ,, مسافر ،، مؤنث دے . يعني صيغهٔ مخاطبه ده.د نر مسافر دپاره.

**مسافري** :- (م + سا + ف + ري)(عپ ، تر ، اس ، مو) اوگورې ,, مسافرت ،، په پردېس کښې د اوسېدلو حالت.

**مسافه** :- (م + سا + فه)(و ـــ مسافت).

**مسافهت** :- (مُ + سا + ف + هت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) يو بل ته ښکنځل کول.يو بل ښکنځل.

**مساکن** :- (م + سا + کن)(ع ، اس ، ج) د ,, مسکن ،، جمع ده .مسکنونه ، کورونه ، د استوگنې ځايونه.

**مساکين** :- (م + سا + کي + ن)(ع ، اس ، ج) د ,, مسکين ،، جمع ده . خوار ، بې ماله خلق ، عاجزان ، غريبانان ، مفلسان.

**مسالت** :- (م + سا + ء + لت)(و ـــ مسئله).

**مسالک** :- (م+سا + لک)(ع ، اس ،ج) د ,, مسلک ،، جمع ده .لارې ، طريقې .

**مسالمت** :- (م + سا + ل + مت)(ع ، اس ، مذ ،ج ـــ ونه) سره روغه کول.

**مسالمه** :- (م + سا + ل + م)(ع ، اس، مو،ج ـــ لې / ات) اوگورئ : مسالمت.

**مسام** :- (م + سا + م)(ع ، اس ، ج ـــ ونه / ات) سورے ، په بدن کښې هغه نرې نرې نه ښکاريدونکې سورې يا مسامونه چې د بدن نه پرې خولې وغېره راووځي.

**مسام** :- (م + سا + م)(ع ، اس ، ج ـــ ونه / ات) سورے ، په بدن کښې هغه نرې نرې نهٔ ښکاريدونکې سورې يا مساموته چې د بدن نه پرې خولې وغېره راووځي.

**مسامحت** :- (م + سا + م + حت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) سترگې پټول ،چشم پوشي کول.د چا بد يا عيب پټول .سستي ، کاهلي ، چا سره د نرمۍ سلوک کول ، چا سره نرمي کول.

**مسامحه** :- (م + سا + م + حه)(و ـــ مسامحت).

**مساند** :- (م + سا + ند)(ع ، اس ، ج) د ,, مسند ،، جمع ده .

**مساوي** :- (م + سا + وي)(ع ، صف) برابر ،يو شان ، يکسانه ، يو هومره.

**ـــ الاضلاع** :- (ـــ يُل)ا +ض +لا+ع)(ع ،تر،مو،ج ـــ گانې) هغه شکل چې ټول بازوگان ئې سره يو هومره اوږدهٔ وي.

**مساوات** :- (م + سا + وا + ت)(ع ، اس ، ج) برابرے ، مساوي توب ،انصاف ، د الجبري يوه قاعده چې په کښې د معلوم رقمونو په امداد نامعلوم رقم معلومولے شي.

**مساويانه** :- (م + سا + وي + يا + نه)(عف ، تر ، مف) په مساوي طور سره ، په برابر ډول.په انصاف سره.

**مساهلت** :- (م + سا + هـ + لت)(ع ،اس ، مذ ،ج ـ ونه) سستي کول، ناراستي کول

**مساهم** :- (م + سا + هم)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ين) شريکوال ، شريک ، ملگرے.

**مساهمت** :- (م+ سا + د + هـ + مت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) شرکت ، شريکوالے ، ملگرتيا ، قرعه اندازي ، پچه اچول.

**مسائل** :- (م + سا + ئل)(ع ، اس ، ج) د ,, مسئله ،، جمع ده .مسئلې.

**مسبب** :- (م + سب + ب)(ع ، اس ، فاعل ، مذ) سبب / سوب جوړ شوے . سبب / سوب گرځېدلے يا باعث شوے يا باعث گرځېدلے.

**مسبب** :- (م + سب + بب)(ع ،اس ، فا ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) سوب جوړوونکے ، سوب ساز ، کار جوړوونکے ، د الله پاک صفتي نوم دے.

**مسبح** :- (م + سب + بح)(ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) تسبيح بيانوؤنکے ، ثنا ويونکے ، د خداے تعالٰی پاکوالے بيانوؤنکے ، سبحان الله ويونکے.

**مسبع** :- (م + سب + بع)(اس ، مف ، مذ ، ج ـــ ات) هغه شکل چې اووهٔ برابر بازوگان او اووهٔ سره برابرې زاويئې لرې . د نظم يو قسم چې په هر يو بند کښې ئې اووهٔ مصرعې وي.

**مسبوق** :- (مس + بو + ق)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) سابق ، وړاندې تېر شوے .گذشته.د فقهې په اصطلاح کښې هغه کس ته وئيلے شي چې د جمعې په مانځه کښې يو يا زياتو رکعتونو نه پس شامل شي.

**مسبوق الذکر** :- (مس + بو + قذ + ذکر)(ع ، تر، صف) هغه څهٔ چې ذکر ئې وړاندې تېر شوے وي.

**مست** :- (مس + ت)(ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه کس چې مستي اخستے وي. ټوپونه درنچکې وهونکے .بې پرواهۍ سره د کړو وړو حامل .حېوان / انسان چې جنسي کېفيت پرې راخور شي او نور.

**مستاجر** :- (مس + تا + جر)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) اجاره اخستونکے، ټېکه دار ،په اجرت باندې مزدوران لگوونکے.

کـــوم راعي بـــه مبـــارک لکه موسیٰ[4] وي
چې شعيب[4] غوندې مرادبخش مستاجر شي (حافظ)

**مستانس** :- (م + س + تا+نس)(ع ، اس / صف ، مذ ، مو ـــ ه) مينه لرونکے . بلد شوے ، اموخته شوے.

**مستانف** :- (مس + تا + نف)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) شروع کوونکے ، اغاز کوونکے ، بيا د سره کوونکے ، محاورتاً جدا ، بېل.

**مستانه** :- (مس + تا + نه)(ف ، تر ، صف) د مستانو په شان ، د مستانو غوندې ، لاپروا .ديوانه ، لېونے ، مجذوب.

**مستاوه** :- (مس + تا + وه)(اس ، مو ، جـــوې) د ماستو اوبهٔ. هغه وريجې چې ماستو کښې پخې کړے شي.

**مستبد** :- (مس + ت + بد)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) يـــواځې کــــار کوونکے . خپلواکه ، خودمختاره .لکه : مستبد حکومت.

**مستبدانه** :- (مس + ت + ب + دا + نه)(عف، تر، تف) د مستبد غونډې / په انداز د خپلواک په توګه ، د مطلق العنان په شان.

**مستبدل** :- (مس + تب + دل)(ع ، اس ، مذ ، مو ـ ه) بدلوونکے ، د يو په ځا ے بل راوستونکے .يو لرې کوونکے بل راوستونکے .

**مستبذر** :- (مس + تب +ذر)(ع،اس،مذ ،مو ـ ه) اسراف کوونکے ، فضول خرچه ، د حد نه زياته خرچه کوونکے .

**مستبعد** :- (مس + تب + عد)(ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) لرې والے لرونکے ، په فاصله ، خيال يا اندازې نه لرې ، ګران ، ناشونے ،ناممکن .

**مستتر** :- (مس + ت + تر)(ع،اس، صف ، مذ ، مو ـ ه) په ستر، پټ، پرده کښې.

**مستتر** :- (مس + ت + تر)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـ ه) پټ کړے شوے ، پنا کړے شوے .په ستر کړے شوې.

**مستثمر** :- (مس + تث + مر)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـ ه) ثمر ورکوونکے (بوټے) مېوه ورکوونکے (بوټے) ، مېوه دار (بوټے).

**مستثنٰى** :- (مس + تث + نٰى)(ع ، اس ، مف ،) بېل ، جدا ، خاص ، غوره .د ګرائمر مطابق هغه اسم کوم چې د استثنٰى د توري نه پس راځي.

**مستثنيات** :- (مس + تث + نې + يا + ت)(ع ، اس ،ج) هغه کارونه کوم چې د نورو نه بېل يا خاص وي.

**مستجاب** :- (مس + ت + جا + ب)(ع ، مذ ، مو ـــ ه) جواب ورکړے شوې ، قبول شوې .منلے شوې يا منظور شوې دعا .هغه کس چې دعا ئې الله پاک نهٔ رد کوي.پيغمبر ص.

**مستجمع** :- (مس + تج + مع)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـ ه) جمع کوونکے ، راټولوونکے .

**مستجمع** :- (مس + تج + مع)(اس ، مف ، مذ ، مو ـ ه) د جمـع کېـدلو ځا ے .جمع شوے ، راټول کړے شوے .

**مستجيب** :- (مس + ت + جي + ب)(ع ،اس ، فا ،مذ ،مو ـ ه)دعا قبلوونکے ، سوال قبلوونکے .دالله پاک صفتي نوم دے .

**مستحاضه** :- (مس +ت +حا + ضه)(ع ، اس ، مو ، جـ ضې) د حيض په شان بيماري ده.حيض کم نه کم درې ورځې شپې او زيات نه زيات لس ورځې شپې وي .که چېرې د ښځې وينه دغه (درېو) ورځو نه کمه يا لسو نه زياته وي نو دغه بيا حيض نهٔ دے.بلکه ښځه مستحاضه ګڼلے شي.د حيض په موده کښې مونځ روژه نهٔ کېږي ولې استحاضه ښځه به دغه احکام په ځا ے راوړي.

**مستحب** :- (مس + ت + حب)(ع،اس،مف،مذ،مو ـ ه) خوښ کړے شوے ، غوره کړےشوے ، د فقهې په اصطلاح کښې هغه عمل ته وائي چې بد نهٔ وي .يعني په کولو کښې ئې ثواب وي خو په نهٔ کولو کښې ئې عذاب نهٔ وي.

**مستحسن** :- (مس + تح + سن)(ع ، اس ، مذ ، مو ـ ه) ښهٔ ګڼلے شوے (کار يا عمل) ، غوره (کار) ، بهتر (عمل) هغه عبادت چې حضور پاک صلى الله عليه وسلم ورته غوره وئيلي وي.

**مستحصل** :- (مس + تح + صل)(ع ، اس ، مف ، مذ ، جـ ه) حاصل کړے شوے ، حاصل شوے .

**مستحصل** :- (مس + تح + صل)(ع،اس /صف،مذ ،مو ـ ه) حاصلوونکے ، وصولوونکے ، اخستونکے .

**مستحضر** :- (مس + تح + ضر)(ع، اس ، مف، مذ ، مو ـ ه) حاضر کړے شوے ، حاضرېدلو ته رابللے شوے ، ياد کړے شوے ، ياد لرلے شوے .

**مستحق** :- (مس + ت + حق)(ع،اس ،مذ، جـ ان / ين) حق لرونکے ، حق دار ، جوګه ، لائق ، قابل ، موزون د زکوٰة حقدار ، مسکين ، فقير.

**مستحکم** :- (مس + تح + کم)(ع ،اس ،مف، مذ ، مو ـ ه) مضبوط ، کلک ، ټينګ

**مستخلص** :- (مس + تخ + لص)(ع ، تف ، مذ ، مو ـ ه) خلاص کړے شوے ، پرېښودے شوے .ازاد کړے شوے .د فقهې د يو کتاب نوم دے.

**مستدرک** :- (مس + تد + رک)(ع ، اس ، صف ، مذ ، جـ ه) درک لګوونکے .د ,,ر,, په فتح سره ، د حديثو د يو کتاب نوم دے.

**مستدعي** :- (مس + تد + عي)(ع ، اس ، مذ) استدعا کوونکے ،درخواست کوونکے .غوښتنه کوونکے .

**مستدل** :- (مس + ت + دل)(ع،اس، فا ،مذ ،مو ـ ه) دليل غوښتونکے ، دليل او ثبوت طلب کوونکے .

**مستدير** :- (مس + ت + دي + ر)(ع ، صف ، مذ ، مو ـ ه) غونډ ، ګول ، مدور ، د دائرې د شکل.

**مستذل** :- (مس + ت + ذل)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـ ه) ذليل کړے شوے ، خوار ، ذليل.

**مسترخي** :- (مس + تر+خي)(ع ، اس ،مذ) مړاوے کېدونکے ، پژمرده کېدونکے ، سست ، مړاوے .

**مسترد** :- (مس + ت + رد)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـ ه) رد کړے شوے ، بېرته ګرځولے شوے .واپس کړے شوے .نامنظور کړے شوے .

**مسترد** :- (مس + ت + رد)(اس ، مف ، مذ ، مو ـ ه) رد کوونکے ، واپس کوونکے .

**مسترضٰى** :- (مس + تر + ضٰى)(ع ، صف) رضامند ، راضي ، خوشحاله.

**مسترضي** :- (مس + تر + ضي)(ع،اس،فا) رضا غوښتونکے ، خوښنودي غوښتونکے .

**مسترهن** :- (مس +تر + هن)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـ ه) رهن ګانه غوښتونکے ، هغه څوک چې يو مخيز ځان سره ګانه ږدي.

**مستري** :- (مس +ت + ري)(اس ، مذ ، ج ـ ان)کاريګر ،هنرمند ،کسب ګر ( ترکاڼ ، لوهار ، اهنګر ، ګلکار وغېره) د مشينونو مرمت کوونکے يا د يو اوزار يا الې سموونکے .

**مستزاد** :- (مس + ت + زا + د)(ع،اس ،مف ، مذ ، مو ـ ه) هغه چې زيات کړے شوے وي. افزون ، زياتے .د نظم يو قسم دے ، عروضو کښې . هغه غزل چې د دوېمې مصرعې نه وروستو داسې ټکړه ور زياته کړے شي .کومه چې د همدغې مصرعې د اولني او اخرينې رکن سره سمه وي او چې کومې مصرعې نه وروستو راوستے شي .دغې مصرعې سره معنوي ربط هم لري.البته د شعر معنٰى بغېر ددې نه هم پوره وي.

**مستسقي** :- (مس + تس + قي)(ع ، اس ، مذ) هغه کس چې د استسقار مريض وي چې د بني ادم تنده نهٔ مري. تږے چې اوبهٔ غواړي.

مـــوږ بـــه څـــنې نشم زهٔ د مېو مستسقي يم
تل که هسې ډکې پيالې څښکم څښکم څښکم (خوشحال)

**مستشار** :- (مس + ت + شا + ر)(ع ، اس ، فا ، مذ ، مو ـ ه) هغه سړے چې صلاح مشوره ترې اخستے شي.مُشير .

**مستشرق** :- (مس + تش + رِق)(ع، اس ، صف ، مذ ، مو ـ ه) اوښان، تابان

، ځلېدونکے ، د مغربي ملکونو هغه عالم چې د مشرقي علومو ماهر وي .هغه غربي چې په شرق ئې تحقيق کړے وي.

**مستطيع** :- (مس + ت + طي + (ع)) (ع،اس،فا،مذ ، مو ـــ ه) استطاعت لرونکے ، قدرت لرونکے ، وس لرونکے.

**مستطيل** :- (مس + ت + طي + ل) (ع ، اس ، فا ، صف) د طويل څخه دے . طول واله ، اوږد .هغه شکل چې څلور ضلعې او څلور زاويې لري .زاويې ئې ټولې قائمې وي او يو بل ته مخامخ ضلعې ئې سره برابرې وي.

**مستعار** :- (مس + ت + عا + ر) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) قرض ، پور ، غوښتلے شوے ، عارضي طور سره اخستے شوے.

**مستعان** :- (مس + ت+عا+ن) (ع ، اس،فا ، صف ، مذ ، مو ـ ه) د چا نه چې امداد غوښتے شي .د خدائے پاک يو صفتي نوم دے.

**مستعجل** :- (مس + تع + جل) (ع ، صف ، مذ ، ج ـــ ه) تعجيل يا تندي کولو واله ، تعدي کوونکے ، جلد باز ، بيړه کولو واله.

**مستعد** :- (مس + ت + عد) (ع، اس ، فا ، مذ ، مو ـــ ه) تيار، ملا تړلے ، موجود ، چست ، چالاک.

**مستعفي** :- (مس + تع + في) (ع ، اس ، صف) استعفیٰ ورکوونکے ، ملازمت پرېښودونکے .(د نوکرۍ نه معافي غوښتونکے) معافي غوښتونکے ، بخښنه غوښتونکے.

**مستعليات** :- (مس+ ت + عل + ل + يا+ت) (ع ، اس ، ج) هغه غږونه يا فونيمونه (چې عام ورته حرفونه يا توري وائي) د ادائيګۍ په وخت ئې د بنده د ژبې يوه حصه د تالو سره لګي .(دا توري دادي :- خ، غ ، ق ، ص ، ض ، ط ، ظ)

**مستعمر** :- (مس + تع + مر) (ع، اس ، مف ،مذ ، ج ـــ ه) تعمير شوے ، اباد شوے ، کالوني وداني.

**مستعمر** :- (مس + تع + مر) (ع ، اس، فا ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) تعمير کوونکے ، اباد وونکے ، کالوني جوړوونکے.

**مستعمرات** :- (مس + تع+ م + را + ت) (ع ، اس ، ج) د ,, مسعمره ،، جمع ده . ابادي ، ودانۍ ، کالونۍ.

**مستعمل** :- (مس + تع + مل) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو) استعمال کړے شوے ، په کار راوستے شوے .هغه څيز چې کار ترې اخستے شوے وي. (که څيز بيا هم د کار وشي نو) زوړ ، مبتلے شوے ، دوېم لاس يا سيکنډ هينډ . (که څيز د استعمال نه پس د کار نۀ وي نو (کباړ ورته وئيلے شو .

**مستعير** :- (مس+ت + عي + ر) (ع،اس،فا،صف،مذ، مو ـه) مستعار غوښتونکے ، عارضي طور سره غوښتونکے ، قرض غوښتونکے.

**مستعين** :- (مس + ت + عي + ن) (ع ، اس ، صف،مذ ،مو ـ ه) استعانت غوښتونکے ، امداد غوښتونکے.

**مستغاث** :- (مس + ت + غا + ث) (ع ، اس ، مف) هغه کس چا ته چې استعاثه يعني فرياد يا شکايت ور اوړلے يا کولے شي .د يو درود شريف نوم دے.

**مستغرق** :- (مس + تغ + رق) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـ ه) غرق ، ډوب .په څۀ کار کښې بوخت يا سخت مصروف او مشغول.

**مستغني** :- (مس + تغ + ني) (ع ، اس ، صف) غني شوے ، بې پروا ، ازاد ، حاجت نۀ لرونکے . مالدار ، شتۀ من ، چې څۀ ته ئې حاجت نۀ وي.

**مستغيث** :- (مس + ت + غي + ث) (ع ، اس ، فا) استغاثه کوونکے ، فرياد کوونکے .فريادي ، انصاف غوښتونکے . هغه چې په عدالت کښې ئې د چا خلاف د حق تلفۍ يا بې انصافۍ خلاف دعویٰ داخله کړې وي.

**مستفيد** :- (مس + ت + في + د) (ع،اس، صف ، مذ ، مو ـ ه) استفاده کوونکے ، فائده اخستونکے ،فائده غوښتونکے .

عـــالمان بــه نصيحت بيان د دين کا
مستفيد به حاضران وي مونږ به نۀ يو (حافظ)

**مستفيض** :- (مس+ت فـي + ض) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـ ه) فيض حاصلوونکے ، فيض موندونکے ، فائده اخستونکے .ګټه کوونکے.

**مستقبل** :- (مس + تق + بل) (ع ، اس،صف) راتلونکے وخت ، ائنده زمانه (ګرېمر) هغه فعل چې د راتلونکې زمانې سره تعلق لري.

**مستقر** :- (مس + ت + قر) (ع،اس،مذ ،ج ـــ ونه) د قرار ځاے ، د ايسار پدلو ځاے ، کور ، کاله.

**مستقل** :- (مس + ت + قل) (ع، صف ، مذ ، مو ـــ ه) استقلال واله ، مضبوط ، کلک ، ټينګ ، پائيدار ، اوږد ژوند واله ، همېشه ، مدام ، پوخ.

لکه څوک چې په خپل دين کښې مستحکم وي
هســـې زۀ د يـــار پـــه مينـــه مستقل يم (خوشحال)

**مستقلاً** :- (مس + ت + ق + لاً) (ع ، تر ، تف) په مستقل ډول ، همېشه د پاره ، بالکل پوخ.

**مستقيم** :- (مس + ت + قي + م) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) نېغ ، راست ، سم ، کلک ، مضبوط .

سلامت ثابت قدم به شادمان تېر شي
که په شرع مستقيم ، له غبره تبنتي (حافظ)

**مستقيماً** :- (مس ت + قي + ماً) (ع ، تف) په مستقيم ډول ، نېغ په نېغو ، نېغ په نېغه

**مستک** :- (مس + تک) (اس ، جم) يو قسم بوټے دے .چې عموماً د غنمو په فصل کښې پخپله کېږي .نرۍ نرۍ ترقي توري دانې کوي .(ف : تلخ دانه .)

**مستکبر** :- (مس + تک + بر) (ع ، اس ، صف) تکبر کوونکے ، مغروره ، کبر ژن ، متکبر ، لويي کونکے .

کل طاعت به ئې سېلاب په اخر يوسي
هر بنده چې ابليس طوره متـکبر شي (حافظ)

**مستکے** :- (مس + ت + کے) (اس ، جم) د ماستو چم ، اوچ کړے شوي ماستۀ .تراوۀ ، مالګين قروت ، تراوۀ د قروتو ګنده ټکړه.

**مستمسک** :- (م+س+ت+م+س+ک) (ع،اس،صف ،مذ ، مو ـ ه) تمسک کوونکے ، پنجه لګوونکے .نښتونکے . حمايت غوښتونکے .

**مستمع** :- (مس + ت + مع) (ع ،اس، صف،مذ ، مو ـه)التماع کوونکے ، اورېدونکے ، غوږ نيوونکے ، سماعت کوونکے.

**مستملک** :- (مس + تم + لک) (ع ، اس ، صف ،مذ ، مو ـــ ه) په ملکيت کښې راغلے ، ملکيت ګرځېدلے ، قبضه کښې راغلے.

**مستملکه** :- (مس + تم + ل + که) د ,, مستملک ،، مؤنث دے.

**مستند** :- (مس + ت + ند) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) سند لرونکے ، تصديق شوے ،منلے شوے ، د اعتبار وړ ، اعتباري ، معتبر.

**مستوبه** :- (مس + تو + به) (پ تر ، اس ، مو) د خوراک يو څيز دے ، مستابه.

**مستوجب** :- (مس + تو + جب) (ع ،اس ، صف، مذ ، مو ـ ه) واجب کوونکے ، ضروري کوونکے ،لازم کېدونکے .لايق ، جوګه ، اهل.

**مستور** :- (مس + تو + ر) (ع + اس ، مذ ، مو ـــ ه) په ستر کښې ، پټ ، پناه ، مخفي ، خفيه ، پرده کښې.

و نمر تـــه ګـــوره پـــه دا انوارو
چې ئې لړ ابر څۀ رنګ مستور کا (سعيد خټک)

**مستورات** :- (مس + تو + را + ت) (ع ، صف ، ج) د ,, مستوره ،، جمع ده .

ستر یا پرده کوونکې ، پرده دارې.زنانه ، جینکې. یا ښځې یا نورې.

**مستوره** :- (مس + تو + ره)(ع ، صف ، مو ، ج ـــ ات) ستر کوونکې ، پرده داره ، پټه محاورتاً پرده کوونکې ښځه ،

نهٔ ئې چا اواز اوریدهٔ نهٔ ئې پلو لیدهٔ شهٔ

دارنګـــه مستورې مرګ بې تره کړې لغړې (حافظ)

**مستؤل** :- (مس + ت + ؤل)(مص) د لفظ ,, مست کول ،، مختصر صورت دے.په مستۍ راوستل.په سر خېژول ، څوک څهٔ ورانول ، ډېره زیاته طرفدارې کول.ډېره نازبردارې کول.

**مستونه** :- (مس + ت + ؤ + نه)(حمص) اوګورئ ,, مستؤل ،، .

**مستوي** :- (مس + ت + وي)(ع ، صف) هوار ، برابر ، په لېول کښې.نېغ ، سم ، راست ،برابر ، یو هومره ، مساوي.

**مسته** :- (مس + ت)(اس ، مو ، ج ـــ ستې) د ,, مست ،، مؤنث.

**مستهام** :- (مس + ت + ها + م)(ع،صف ،مذ ، مو ـــ ه) حېرانه، پرېشـانه ، سرګردانه ، اوتر.

**مستهان** :- (مس + ت + ها + ن)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ذلیل ، خوار ، د خلقو په نظر کښې سپک ، سپک سپاندے ، بې عزته .

**مستهلک** :- (مس + ته + لک)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هلاک شوے ، تباه شوے ، نابود شوے ، برباد ، تباه.

**مستي** :- (مس + تي)(ف ، تر ، اس ، مو) یو داسې کېفیت ته وئیلے شي چې په حېوان خوور شي نو ټولو کړو وړو او حرکاتو نه ئې د طاقت خوشحالۍ او ژوند سره د انتهائي مینې اظهار ښاخي . جوش ، جذبه، ددغه هر څهٔ وجه یا اندروني وي یابېروني .اندروني کښې د جنسي شهوت او بېروني کښې دمالدارۍ مثالونه ورکړے کېدے شي .د احساس نه هم پرې کېفیت په حېوان خوورولے شي . لکه د حېوان ناطق په لړ کښې د عهدې او اختیاراتو احساس ، دغه عوامل حېوان خصوصاً حېوان ناطق کښې د مستۍ غوښولو باعث کېږي.

**ـــ اباسل یا ویستل** :- د مستۍ په وجه د غلط کار کولو سزا ، درستول ، سمول ، منې اېستل یعنې داسې کار کول چې منې خارج شي . په چا داسې کار کول چې دولت نه خلاص شي.

**ـــ کول** :- لړیا ډېر بې هوده حرکات یا خبرې کول. د خوشحالۍ اظهار کول ، (لکه: ټوپونه وهل ، چغې سورې وهل ، وغېره) فضول خرڅي کول. د غرور تکبر یا بې پروایۍ او بې غمۍ تاثر ورکول.

**ـــ وتل** :- مستۍ نهٔ پاتې کېدل ، د مستۍ کېفیت تلل .د ورانۍ او شرارت جوګه نهٔ پاتې کېدل.مال او دولت یا عهده ختمېدل .منې وتل ، حالات او شرائط ناموافق کېدل.

**فاقه ـــ** :- (فا + ق ـــ)(ف ، تر ، اس ، مو) سره د غریبۍ او عاجزۍ چې لوږې نهرې پرې تېرېږي او بیا هم د مستۍ او بې پروایۍ اظهار کوي . په غریبۍ او خوارۍ کښې د خپل حېثیت نه زیات خرڅ کول.,, فاقه مستۍ ،، ته اکثر خلق ,,پاکه مستي ،، وائي او دغسې کس ، ښځې یا سړي ته ,,پاکه مسته ،، یا پاک مست وائي.

**مستۍ** :- (مس + تۍ) د ,, مستي ،، جمع ده. د ,, مستي ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ د کوني وتل** :- د وران کارۍ سزا موندل.د مستۍ غلطې نتیجې راوتل. وائي چې مستي ئې د کونې نه اووته.

**مستے** :- (مس + تے)(اس ، جم) ماستهٔ ، چکه .یادابنت :- (دغه املا ,,مستے ،، مې ځکه اولیکله چې ,, مستي ،، د ,,مستے ،، په شان اوږد څوک وئیلے نهٔ شي او چې نهٔ شي وئیلے نو څوک پرې پوهېدلے هم نهٔ شي . ځکه چې ,,مستې ،، (ښځې) پله خیال ځي .خو چې ,, مستے ،، شي نو د صحیح لیکلو په وجه صحیح لوستلے کېدے هم شي او چې صحیح اولوستلے شي نو پرې لوستونکې پوهه هم شي .نو دلته داسې لیکل زما مجبوري ده.

**مستیا** :- (مس + ت + یا)(اس ، مو) میرګاټي ، (د جینکو مشهوره لوبه) څپردخ

**مستیاره** :- (مس + ت+ یا + ره)(اس ، مو) یو بوټي دے چې کچه زیړ رنګ ګلونه کوي .د تبې د ګرمۍ دپاره د دارو په طور استعمالېږي .د ګډو په ځینو مرضونو کښې هم پکارولے شي. وینهٔ ، هغه چینجې چې لړګې خوري. ګونې.

**مستېدل** :- (مس + تې + دل)(مص) مست کېدل ، مستۍ کښې راتلل . په سر ختل ، د ډېرې نازبردارۍ په وجه عادت خرابېدل. د دولت یا قوت له کبله د مستانو په شان کارونه یا خبرې کول.

**مسجد** :- (مس + جد)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / مساجد) جماعت ،جومات ، د مسلمانانو د عبادت ځاے.

**ـــ اقصٰی** :- (ـــ ا + ق + صا)(ع ، ف ، تر ، اس ، مع) لرې جـــومـــات (جماعت) د بیت المقدس هغه عبادت ګاه ، کومه چې حضرت سلیمان علیه السلام جوړه کړې وه.د بیت المقدس جومات (جماعت) دا د مکې معظمې نه ډېر لرې دے ځکه مسجد اقصٰی (د لرې جماعت) بللے شي . کوم چې په فلسطین کښې دے.

**ـــ حرام** :- (ـــ (د) + ح + را + م)(عف، تر، اس ، مع) خانهٔ کعبه ، هغه (جماعت) چې د کعبې نه چاپېره جوړ شوے دے.او په بیت الله شریف یادېږي.

**ـــ نبوي** ؐ :- (ـــ (د) + ن + ب + وي)(عف، تر،اس، مع) د نبي ؐ جماعت د مدینې منورې مشهور جماعت ، چې حضور پاک صلی الله علیه وسلم او اولنو مسلمانانو جوړ کړے وهٔ .د حضور پاک روضه مبارکه هم ددې جماعت سره متصله ده.بلکه اوس په کښې دننه ده.

**مسجمع** :- (م + سج + جع)(ع ، اس ، صف) سجع واله ، هغه عبارت چې په کښې هم قافیه الفاظ استعمال شوي وي.قافیه بند عبارت ، قافیه وار عبارت .مقفٰی هم ورته وائي .خو په دې صورت کښې دغه هم قافیه الفاظ د جملو په اخر کښې راوستے شي. هر کله چې دا هم قافیه الفاظ نثري عبارت د جملو په مېنځ کښې یا په اخر کښې راشي .نو دغې نثر ته مرصع نثر وئیلے شي . په نظم کښې د یو شعر څلور برخې کړے شي.هره برخه یو شان قافیه لري.او څلورمه (اخري) برخې قافیه د نظم د عامې قافیې مطابق وي.

**مسجل** :- (م + سج + جل)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه کاغذ چې د قاضي یا د عدالت مهر پرې لګېدلے وي.اصطلاحاً : صحیح ثابت ، قابل اعتماد ، سجل یعنې ,, رسید ،، واله څیز.چې د ملکیت ثبوت ئې وي.

**مسجود**:- (مس + جو + د)(ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) د سجدې جوګه ، چې سجده ورته کېږي او ښائي.

**مسح** :- (مس + ح)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ حې) ګوتې یا لاس ور وړل ، د فقهې په اصطلاح کښې د اودس په وخت لواندهٔ لاسونه په سر راکښل او لوندې ګوتې په غټې لګول.مسح فرض هم واجب هم او سنت هم.

**ـــ کول** :- په اودس کښې لواندهٔ لاسونه په سر یا په بل کوم اندام راښکل.

**مسخ** :- (م + سخ)(ع ، اس) شکل بدلېدل ، لکه انسان نه بیزو یا شادو جوړېدل

**مسخر** :- (م + سخ + خر) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) تسخیر شوے ، په اختیار یا قبضه کښې راوستے شوے ـ د حکم تر لاندې راوستے شوے ـ فتح کړے شوے ـ

**ـــــ کول** :- تسخیر کول ، په اختیار یا قبضه کښې راوستل ـ د حکم تر لاندې راوستل ـ فتح کول ـ

**مسخرګي** :- (مس + خ + ر + ګي) (ف تر ، اس ، مو) ټوقې ټقالې ، خندا ، ګپ شپ ، ملنډې ، ټټوبې ، د چا سپکاوے کول ـ

**مسخره** :- (مس + خ + ر) (ف ، اس ، مو ، ج ــــ رې) ټوقه ، وشته ، ټقاله ، ټوقه ټقاله ـ ټوقمار ، ټقالې ، ټوقې ټقالې کونکے ، ټوقې وشتې کونکے ، هغه چې په خپلو ټوقو نخرو خلق خندوي ـ

د مــــرزا دیوان مې وماندۀ پــه ګوډي
مسخره مې ارزاني خوښکے زمند کړ (خوشحال)

**مسخرې** :- (مس+خ+رې) د ,, مسخره ،، جمع ده ـ د ,, مسخره ،، بدل شکل چې د مغبره ؤ تورو سره راځي ـ

**ـــــ کول ، چا پورې** :- چا پورې ټوقې کول ، چا پورې خندا کول ـ

**مسدس** :- (م + س + دس) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) هغه شکل چې شپږ بازوګان (ضلعې) لري او دا شپږ واړه بازوګان زاویې په خپلو کښې برابرې وي ـ د نظم یو قسم ، چې په هر بند کښې ئې شپږ مصرعې وي ـ

**مسدود** :- (مس + دو + د) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) سد کړے شوے ، بند کړے شوے ـ بندشوے ، بند ، ختم کړے شوے ـ

**مسرت** :- (م + سر + ت) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) خوشحالي ـ

**مسرف** :- (مس + رف) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ان) اسراف کوونکے ، فضول خرڅي کوونکے

کشتۍ هم چې ډېره ډکه شي ډوبېږي
د مسرِف په ځان بلا شي خپل اسراف (رحمان بابا)

**مسرور** :- (مس + رو + ر) (ع ، اس مف ، مذ ، مو ــ ه) خوشحاله ، بنیاد ، خوشحاله (کس) ښاد ، په مزه کښې ـ

**مسروق** :- (مس + رو + ق) (ع ، اس مف ، مذ ، مو ــــ ه) سرقه شوے ، غلا کړے شوے ، پټ کړے شوے څیز ، مسروقه ئې مؤنث دے ـ

**مسروقه** :- (م + س + رو + ق) (ع ، اس ، مف ، مو) د ,, مسروق ،، تانیث دے ـ

**مال ـــــ** :- (ما + ل ـــــ) (ع ، تر ، اس ، ج) غلا کړے شوے مال ، د غلا مال ـ

**مسطح** :- (مُ + سط + طح) (ع ، اس ، مف ، مذ) سطحې کړے شوے ، هوار شوے ، خوور شوے ، پلن ، غوړولے شوے ـ

**ـــــ کول** :- هوارول ، د زمکې وغېره مخ هوارول سمول ، برابرول ـ

**مسطر** :- (مس + طر) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) هغه اله چې سطرونه (کرښې) پرې راښکلے شي ـ پیمانه ، هغه ګته چې د کرښو راښکلو دپاره پرې مزي لګولے شوي وي ـ هغه کاغذ چې شوخې کرښې پرې راښکلے شوې وي ـ دا د بل سپین کاغذ د لاندې کښېښودے شي او ددې په امداد په سپین کاغذ خط کولے شي ـ د کتاب کاغذ ـ

**مسطور** :- (مس + طو + ر) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) هغه څیز چې کرښې پرې راښکلے شوې وي ـ سطرونو واله ـ کرښو واله ـ لکیر دار ، لیکلے شوے ، تحریر کښې راغلے ـ

**مسطود** :- (مس + طو + د) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) سعادت مند ، بخت اور ، بختور ، محاورتاً ښۀ یا نیک عمله ـ

**مسقط** :- (مس + قط) (ع ، اس ، مذ) د سقوط ځاے ، د پرېوتلو ځاے ـ د پیداوښت ، د زیږېدلو ځاے (مع) په عربو کښې سهېل نمرخاتۀ طرف ته د یو مشهور ښار نوم دے ـ چې پخواني حلوا ډېره مشهوره وه ـ دا وخت د متحده عرب اماراتو څخه یو دے ـ

**مسک** :- (مس + ک) (ع ، اس ، جم) مشک ، عطر ، خوشبويي یا خوشبوئین ـ

**مسکا** :- (مس + کا) (اس ، مو ، ج ــ ګانې) تبسم ، موسېدنه ، موسکېدنه ، بې اوازه خندېدل ، داسې چې شونډې بېرته شي غاښونه ترې ښکاره شي ـ

**مسکارول** :- (مس + کا + رل) (مص) سپې ته د بلنې اواز ورکول ـ تو وئیل توتو وئیل ـ سپے پارول ، سپي ته اوش اوش کول ، مسکارۀ هم وئیلے شي ـ

په زر زر به په لېمۀ درپسې ځښېږم
که مــې بولې لکــه سپے په مساره (حسین)

**مسکټ** :- (مــس + کــټ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) ټوپک ، یو پخوانے ټوپک ـ

**مسکر** :- (مس + کر) (ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) په سُکر کښې راوستونکے ، نشه کوونکے ، نشه اور ـ

**مسکرات** :- (مس + ک + را + ت) د ,, مسکر ،، جمع ده ـ نشه کوونکې څیزونه ـ

**مسککۍ** :- (مس + ک + کۍ) موسېدونکې ښځه ، جینۍ ، زنانه ، خندرویه زنانه ـ

**مسککے** :- (مس + ک + کے) (اس ، مذ ، ج ــ کي) موسېدونکے ، خنده رویه کس

**مسکن** :- (مس + کن) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) د سکونت ځاے ، کور ، مکان ، د اوسېدلو ځاے ـ

**مســــکن** :- (م + س + ک + کــن) (ع ، اس ، صــف ، مــذ ، مــو ــــــ ه) ســکون راوستونکے ، سکون پیدا کوونکے ، ارام کوونکے ، تسله ورکوونکے ـ

**مسکنت** :- (مس + ک + نت) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) مسکیني ، غریبي ، ناداري ، افلاس ، عاجزي ـ

**مسکندي** :- (مس + کن + دي) موسېدونکې ـ

**مسکندے** :- (مس + کن + دے) (اس ، صف ، مذ ، ج ــــ دي) موسېدلے ، متبسم ، موسکېدونکے ـ

**مسکول** :- (مس + ک + ول) (مص) خندول ـ

**مسکون** :- (مس + کو + ن) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) د سکونت جوګه ځاے ، کور ، د اوسېدلو قابل ځاے ـ

**مسکه** :- (مس + که) (ف ، مذ) کُچ ، د کیمیا په اصطلاح کښې هغه پاره چې د دوایانو نه جوړه شوې وي ـ

ما خپل کام بیا نۀ موند شوملې شاربم مسکه نۀ وي
څـۀ کــړم نــور وګړے که روزي ئې کامراني شوه (حافظ)

**مسکه** :- (مس + که) (اس ، مو ، ج ــــ کې) هغه ښځه (یا ماده ځناور) چې بچے ئې غورځولے وي یا غورځوي) بې وخته (د وخت نه مخکښې) بچے زېږوونکې ـ زیان کوونکې ـ بچے غورځوونکې ـ

**مسکے** :- (مس + کے) (صف ، مذ ، ج ــ کي) هغه کس چې لګیا وي موسکېږي ـ په مسکا ، په خندا ـ

**مسکېدل** :- (مس + کې + دل) خندل ، موسېدل ـ

**مســـکین** :- (مــس + کــي + ن) (ع ، صــف ، مذ ، مو ــ ه) عاجز ، خوار ، غریــب ، حاجتمند ، د فقهې په اصلاح کښې هغه غریب سړے چې هغۀ سره دومره مال نۀ وي چې زکات پرې واجب وګرځي ـ

**ـــــ طبع** :- (ــ طب + ع) (عف ، تر ، صف) عاجز طبع ، د عاجزانو په شان طبیعت لرونکے ـ

**مسکینه** :- (مس + کي + نه) (اس ، مو ، ج ــــــ لې) یو قسم ډوډۍ چې د مهو

او د مسورو د دال او پیازو نه پخولے شي.نسکینه.

**مسکيني** :- (مس + کي + ني) غریبي ، عاجزي.

**ـــــ کول** :- عاجزي کول ، لوئي او کبر نۀ کول.

**مس گر**:- (مس + گر)(ف تر،اس، مذ،ج ـــــ ان) د مسو کاریګر، د تانبې نه لوښي وغیره جوړوونکے ، ټپار.

**مسګره** :- (مس + گ + ره)(اس ، مو، ج ـــ رې) د ,, مسکر ،، مؤنث دے.

**مسګري** :- (مس + گ + ري)(ف ، تر،اس ، مو) د مسو یعني کار، د مستو (تانبې) د لوښو وغیره ؤ د جوړولو کار ټپارتوب.

**مسل** :- (م + سل)(ع،مذ، ج ـــ ونه) روئیدار، د مقدمې د کاروایئ ټول تحریري کاغذات چې یو ځاے جمع کړے شوي وي. (اصلاً ,, مثل ،، دے).

**مسل** :- (م + سل) موسېدل ،مسکال کول ،خندل.

**مسلح** :- (م + سل + لح)(ع ، اس ، مف ، مذ ،مو ـــ ه) وسله بند، وسله دار ، وسله په لاس.

**مسلخ** :- (مس + لخ)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د څاروو د حلالولو ځاے . ذبح خانه ، قصاب خانه ، مذبح خانه.

**مسلسل** :- (م + سل + سل)(ع ، تف) پرله پسې ، متواتر بیا بیا ، جاري.

**مسلط** :- (م + سل + لط)(ع ، اس ، مف ،مذ ، مو ـــ ه) قابض حاوي ، غالب (محاورتاً دپاسه).

د فلک په پالکئ پاس څله هوس کړې
زر د غـم پیل مسلـط کـړئ په پالليو (حافظ)

**ـــــ کول** :- غالب کول ،قابض کول ، دپاسه کول.

هغه مخ چې ئې کعبه وه د دوؤ سترګو
مسلـــط که باندې خط مواس د کفر (حمید)

**ـــــ کېدل** :- غالب کېدل ، برے موندل ، قابض کېدل.

**مسلک** :- (مـس + لـک)(ع ، اس ، مـذ ،ج ـــ ونـه) لار ، طریقـه ، قاعـده ، دستور ، رسم رواج ، مذهب ، مذهبي لار یا ډله پره.

**مسلکي** :- (مس + ل + کي) مسلک تـه منسوب ، مسلک والا ، کومې خاص لارې یا طور طریقې سره تعلق لرونکے.لکه : مسلکي تعلیمات.

**مسلم** :- (م + سل + لم)(ع ، اس ، مف ، مذ ،مو ـــ ه) تسلیم شوے ، منلے شوے ، یقیني چې شک شبه په کښې نۀ وي .ثابت ، پوره او سالم.

**مسلمه** :- (مس + لم)(ع ، اس ، مذ ،ج ـــ ان / ین) تسلیم کوونکے ، منونکے ـمحاورتاً اصطلاحاً مسلمان ،اسلام منونکے ،د اسلام پـه تعلیماتو او احکاماتو عمل کوونکے.

**مسلمان** :- (م + سل + ما + ن)(اس ، مذ ، ج ـــ ان) مسلم ، د اسلام پیرو.

**مسلمانول** :- (م + سـل + مـا + ن + ول)(مـص) اسـلام تـه را اړول .مسـلمان جوړول .نوے لوښے په اول ځل کنګالول چې حکماً ئې استعمال درست شي. د ورانو کارونو نه / څخه نېکئ ته را اړول.

**مسلمانه** :- (م + سل + ما + نه)(عپ،تر، اس ، مو ، ج ـــ انې) د ,, مسلمان ،، مؤنث دے. د صفت په طور هم استعمالېږي. لکه : مسلمانه ښځه. مسلمان ته د مخاطب په وخت وئیلے شي.

**مسلماني** :- (م + سل + ما +نې)(عف ، تر، اس ، مو) د مسلمان عمل او کړۀ وړۀ.د اسلام طریقه ، د مسلمانانو طریقه.

**مسلمانېدل** :- (م+ سل + ما + نې + دل)(مص) اسلام کښې داخلېدل .د اسلام په دین کښې شاملېدل.اسلامي عقیده او عمل خپلول.

**مسلمه** :- (مس + ل + مـه) د ,, مسلم ،، مؤنث د مسلم د مخاطب کولو پـه وخت وئیلے شي.

**مسلوب** :- (مس + لو + ب)(ع ، اس، مف ، مذ ، مو ـــ ه) سلب کړے شوے ، تړولے شوے. شوکولے شوے.اخستلے شوے.قبضه کړے شوے.

**مسلول** :- (م + س + لو + ل)(ع،اس،مف، مذ ، مو ـــ ه) ,,سل ،، وهلے ، د ,,سل ،، په مرض اخته.د سل مریض. رابنکلے شوے ، باهر تـه راوېستلے شوے.د تېکې نه راوېستلے شوے.

**مسلي** :- (م + سل + لي)(ع ،پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) چجونه جوړوونکے ، شاخېل.جاروکښ ، چواړے.

**د ـــ خونه** :- (پ تر،اس ، مو، ج ـــــ نې) ګنده،خیرن ، خسا ، (فلانئ خو د مسلي خونه ده).

**مسلئ** :- (م + س + لئ)(اس ، مو) مطربه ، هغه ښځه چې خلق ئې په طرب او خوشحالئ کښې راولي.

**مسـماة** :- (م + سـم+ما + ت)(ع ، اس) د ,, مسـمي ،، مؤنـث دے .نـوم ئـې کښېښودے شۀ، نوم ورکړے شۀ.یو لقب دے چې د زنانه ؤ د نوم نه اول لیکلے او وئیلے شي.یعني دا نوم لرونکے فلانئ.

**مسمار** :- (مس +ما + ر)(ف ، صف) عمارت ورانول ، نړول ، راغورځول ، ویجاړ یا ړنګ کول. موږے ، مېخ .

**ـــــ کول** :- نړول ، ورانول ، ړنګول.

**مسـماري** :- (مـس+ مـا + ري)(ع، ف تـر ، صـف) مېخـي ، مـېخ سـره تعلـق لرونکے ، لکه : مسماري خط.

**مسماع** :- (مس + ما + ع)(ع ،اس، مذ ،ج ـــــ ونه)د اورېدلو اله یا مشین.

**ـــــ الصدر** :- (ـــــ عص + ص + در)(ع ، تر ، اس ، مذ ) هغه اله چې د زړۀ د دزرېدلو اواز پرې اورېدے شي.ستېتهوسکوپ.

**مســـــمریزم** :- (مـــس + م+رز+م)(انګ،اســـم،مذ ) (MESMERISM) د اسټریلیا یو فزیشن ډاکټر مسمر(MESMER) یو علم ایجاد کړے وو. کوم کښې چې څوک خپل خیال او تصور اثر د بل چا په زړۀ کښې وراچولے شي .او داسې د هغه (دوېم) کس زړۀ کښې اطلاع یا معلومات حاصلولے شي.دغسې پټ او د مستقبل په بابله اطلاع هم حاصلوي.

**مسموم** :- (مس +مو + م)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) زهر ورکړے شوے .زهر خوړلے ، زهرژن.هغه چې زهر په کښې ګډ وي.

**مسمي** :- (م + سم + مي)(ع ، جمله ، مذ )(سړے) چې نوم ئې دے. چې نوم ئې اېښودے شوے دے. چې پېژندلے شي په....

**مسند** :- (مس +ند)(اس ، ظ ،مذ ، ج ـــ ونـه / مسـانید ) د تکیـه لګولـو ځـاے ، د ډډې لګولو ځاے ، د تکیې ځاے .(غټ بالښت یا کوچ ، صوفه وغېره).

**ـــــ نشین** :- (ـــــ ن + شي + ن)(عف، تر، اس ،مذ ،ج ـــ ان) هغه چې په مسند ناست وي .په تخت کښېناستونکے پـه کرسئ ناست .په ګدئ ناست .مسند ارا هم وئیلے شي چې معنٰی ئې ده کرسئ / چوکئ یا ګدئ .(په خپله ناست) ښائسته کوونکے / کي / کې.

**مسند** :- (مس + ند ) (ع ، اس ، ج ـــــ ونـه / مسـانید ) د بـل چا پـه سند وئیلے شوے بیان یا خبره. (ګرائمر) کښې د جملې ,, جُز ،، .

**ـــــ الیه** :- (ـــــ ا / اي + لے + ه)(ع ، تر ، اس) په ګرائمر کښې هم نحو کښې مبتداء ته وئیلے شي.هغه چې کوم خبر ورته منسوب وي.

**مسنون** :- (م + س + نو + ن)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مـو ـــ ه) سنت لار ،طریقه ، هغه کار چې حضور پاک صلی الله علیه وسلم په خپله کړے وي ، په مخکښې ئې شوے وي یا ئې وئیلې وي . جائز ، درست ، تېرۀ کړے شوے.په باب شوے.

**سـلامـــــ** :- (س + لا + م ـــــ )(عـف، تـر،اس ، مـذ ) د سنت نبوي ﷺ د

طريقې مطابق سلام،السلام عليكم !

**مسو** :- (م + سو ) د ,,مس ،، يو شكل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**د ـــ كان** :- د مسو درنګ۔په غرۀ كښې د مسو قدرتي ذخيره۔

**د ـــ لوښې** :- (د ــــ لـو + ښـې )( پ تـر ، اس ، ج ) د مسـو نـه جـوړ شـوي لوښې۔مسين لوښې۔

**مسواك** :- (مس + وا + ك )( ع، اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) هغه خاص قسم لرګے چې رېښې لري او غاښونه پرې صفا كوي۔دا عموماً د كيكر يا د پلوسې وغېره لرګے وي۔د يو بوټي جرړه هم وي چې نيل دار وي او د غاښونو صفا كولو دپاره پكار راوستے شي۔ د ټوټه‌برش پخوانے شكل دے چې كول ئې د صفايۍ د يو ضروري برخې په سوب سنت د پېغمبر ﷺ دي۔

**مسواكه** :- (مس + وا + كه )( عپ ، تر ، صف ، مو ) مسواك سره تعلق لرونكے ، مسواك ته منسوبه۔ هغه ګوته چې د خولې د صفايۍ په وخت ترې د مسواك يا ټوټه‌برش غوندې كار اخستے كېږي۔ د كچې نه څلورمه او كتې نه دوېمه ګوته۔

**مسـوده** :- (م + سـو + و + ده )( ع ، اس ، مـو ، ج ـــ دې ) تـور كـړے شـوي كاغذونه ، كاغذ د لاس ليكلې مضمون يا مقاله يا بل څۀ ليك۔

**مسودے** :- (م + سو + و +دے ) د ,,مسوده ،، جمع۔د ,,مسوده ،، بدل شكل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**مسور** :- (م + سو + ر )( اس ، جم ) مشهوره غله يا دال ، نسك۔

**مسول** :- (م + س + ؤل )( مص ) خندول۔

**مسؤل** :- (مس + ؤ + ل )( ع ،اس ، مف ، مذ ،مو ـــ ه ) پوښتلے شوے ، سوال پوښتېدلے۔هغه څوك چې پوښتنه ترې كېدلے شي۔جواب ده۔ذمه وار۔

**ـــ مدير** :- (ـــ م + دي + ر )( عپ ، تر ،اس ،مذ ، ج ـــ ان ) د اخبار يا د رسالې وغېره مدير (ايډيټر) څوك چې دغو كښې د چاپ كېدونكو مضامينو يا خبرونو په حقله ذمه دار وي او دهغۀ نه پرې جواب غوښتلے شي۔

**مسؤليت** :- (مس + ؤ + لي + يت )( ع ، اس ، مذ ) جواب دهي ، ذمه داري۔

**مسؤلين** :- (مس + ؤ + لي + ن ) د ,,مسؤل ،،جمع ده۔

**مسوه** :- (مس + وه )( اس ، مو ) چكه ، ماستۀ ، مستكې۔

**مسويک** :- (م + سو + يک )( اس،مذ،ج ـــ ان ) د سوي وړوكے بچے۔

**مسهل** :- (مس +هل )( ع،اس،مذ ، ج ـــ ونه ) سهال راوستونكے ، دستونه راوستونكے۔دست اور (دارو ) جلاب۔

**مسهلات** :- (مس + هـ + لا + ت ) د ,,مسهل ،، جمع ده۔ هغه داروګان چې د جلابو كار كوي۔

**مسئله** :- (مس + ء + ل )( ع ،اس،مو،ج ـ لې / مسائل ) تپوس ، سوال ،هغه سوال چې يو باقاعده موضوع سره تعلق۔ لانجه ، شخړه ، ګرانه معامله۔

**مسئلې** :- (مس + ء + لې ) د ,,مسئله ،، جمع ده۔د ,,مسئله ،، بدل شكل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**بنيادي ـــ** :- (بُن + يا + دي )( عپ،تر،اس، مو، ج ) هغه مسئلې كومې چې په يوه،معامله كښې اصل او د بنياد حېثيت لري۔ ابتدائي اهمې مسئلې

**حربي ـــ** :- (حر + بي )( عپ ، تر ، اس ، مو ، ج ) هغه معاملې چې د جنګ سره تعلق لري۔

**ـــ كول** :- د دين متعلق تقرير كول يا احكام او قوانين بيانول۔

**مسې** :- (م + سې )( اس ، مو ) د وېښتو د ارائش او جوړولو يو قسم۔ د زنانه ؤ يو قسم كالے (زېور )۔

**مسـئ** :- (م + س + ئ ) نمسۍ ، د نمسي مؤنث دے ۔نمسۍ ، نوسۍ ، لمسۍ۔

**مسي** :- (م + سي )( ف تر ، صف ) د مسو (دهات ) سره تعلق لرونكے ۔ د مسو نه جوړ شوے مشين۔

**مسي** :- (م (س ) + سي )( هـ ، اس ، مو ) يو قسم توربخن رنګ دے چې زنانه ئې د ډول سنګار دپاره په غاښونو اورو او شونډو لګوي ۔(په پښتنو كښې ئې رواج ډېر كم دے ۔دهندوستان په خلقو كښې عامه خبره ده )۔

ميخي غاښ په مسي تور عشوه پرداړې (خوشحال )

**مسے** :- (م + سے )( اس،مذ ،ج ـــ سي ) نمسے ، نوسے ، لمسے۔

**مسيت** :- (م + سي + ت ) اكثر پېښوري او نور وائي ,,وزير مسيت ،، نو د ,,مسيت ،، نه ئې مطلب مسعود وي۔

**مسيح / مسيحا** :- حضرت عيسىٰ عليه السلام چې ډېرې معجزې ئې بيانېږي ۔يوه په كښې د مړو د ژوندي كولو هم ده۔

معجزه چې د حياء ده په دوه لب ئې
لاس په لاس د مسيحا له لاسه يوړه (خوشحال )

**مسيحا** :- (م + سي + حا )( و ـ مسيح ) د لاحقې په طور نورو الفاظو سره راځي۔
لكه : مسيحا نفس / دم معشوقه ، محبوب هم د عاشق د ژوند باعث ګڼلے شي۔

**مسيحائي** :- (م + سي + حا + ئي )( عف ، تر ، اس ، مو ) د عيسىٰ عليه السلام په شان په معجزه رنځور رغول يا مړے راژوندے كول ۔ عموماً د معشوقې او محبوب دپاره استعمالېږي۔چې هغه د عاشق مرض لرې كړي ۔يا عاشق داسې را ژوندے كړي لكه څنګه چې حضرت عيسىٰ [۴] كول۔

**ـــ كول** :- د حضرت عيسىٰ [۴] په شان ناجوړه خلق رغول يا مړي ژوندي كول ۔(عموماً په شاعرۍ كښې د معشوقې يا د محبوب دپاره استعمالېږي )۔

**مسيحي** :-(م + سي + حي )( اس ، مع ، مذ ، ج ـ ان )د حضرت عيسىٰ عليه السلام منونكے۔د حضرت عيسىٰ عليه السلام پېرو ۔كرستانے ، كرسچن۔عيسىٰ عليه السلام ته منسوب۔عيسوي سن يا كال ، ميلادي كال ۔

**ـــ كال** :- (ـــ كا + ل ) د عيسوي تقويم (كېلنډر ) كال۔ميلادي تقويم۔

**مسيخ** :- (م + (س ) سي + خ )( ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) مسخ شوے۔

**مسېدل** :- (مُ + سې + دل )( مص ) مسكے كېدل ، بې اوازه خندا كول ۔ (مسېدل ، د ميم زور سره هم وائي )۔

**مسېدنه** :- (م + سې + د + ن )( حمص ) موسكے كېدنه ، مسكا كونه ، خندېدنه۔

**مسېدۀ** :- (م + سې + دۀ )( و ـــ مسېدنه )۔

**مسير** :- (م + سي + ر )( اس ، ظر ، مذ ، ج ـــ ونه )د سېل ځاے (د سېل دپاره ) ګرځېدنه۔

**مسين** :- (مه / م + سي + ن )( عپ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ),,مس ،،(دهات ) سره تعلق لرونكے د مسو (دهات ) څخه جوړ شوے څيز۔

**ـــ لوښي** :- (ـــ لو + ښي )( پ تر ، اس ، ج ) د مسو نه جوړ شوي لوښي۔ د تانبې لوښي۔

**مسينه** :- (م + سي + نه ) د ,,مسين ،، مؤنث دے۔د مسينو نه جوړ شوے۔

**مش** :- (مش )( اس ، مذ ، ج ـــ ان ) سنډا۔

**مـش** :- (مُش )( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) كوتلے جبب ، د ترخ جبب ، د ډډې جبب۔ سواتيان ورته د ګاونډي جبب وائي۔

**مشابه** :- (م + شا + به )( ع ، اس ، مو ) مشابهت لرونكے ، هم شكله ، يو شان۔

**مشابهت** :- (م + شا + ب + هت )( ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) شباهت لرنه ، يو شان والے ، هم شكلي ، مطابقت۔

**ـــــ لرل** :- يو شان والی لرل ، يو شان ,, بودل ،، پـه شكل پـه رنگ وغيـره كښې يو شان والی لرل.

**مشاتمت** :- (م + شا + ت + مت)(ع ، اس ، مذ ، جـــونـه) يو بـل تـه كنځل كونه ، بد و رد وئيل يو بل ته سره ښكنځل كول. سره بد رد وئيل.

**ـــ كول** :- جګړه كول ،سره نښتل ، منازيمت كول ، مخالفت كول ، بحثونه كول.

**مشاده** :- (م/مو + شا + ده)(اس ، مو ، جـــدې)(طنزاً) مخ ، شكل ، خراب شكل.

**مشار** :- (م + شا + ر)(ع ، صف) هغه چې اشاره ورته شوې وي .ښودلې شوے ، په ګوته كړے شوے.

**ـــــ اليه** :- (ـــــ(رُن) + اي + لې + ه)(ع ، تر ، اس) چا تـه چې اشـاره شوې وي.هغه چې څوک په اشاره ښودلې شوے وي.

**ــــ اليها** :- (ــــــ اي + لي + ها) د ,, مشار ،، اليه مؤنث دے.

**اليهم** :- (ــــ اي + لي + هم) د ,, مشاراليه ،، جمع ده.

**مشارب** :- (م + شا + رب)(ع ، اس ،ج) د ,, مشرب ،، جمع ده .د اوبو وغيره د څښكلو ځايونه. طريقې ، مسلكونه ، مذهبونه ، محفلونه.

**مشاركت** :- (م + شا + ر + كت)(ع، تر،اس ، مذ ، جـــونـه) شركت ، شريک والي ، شريكېدنه ، برخه اخستنه.

**ـــــ كـول** :- شـريكېدل ، پـه يـو كـار كښـې شـركت كول،برخـه اخستل،شاملېدل.

**مشارق** :- (م + شـا + رق)(ع ، اس ، ج) د ,, مشـرق ،، جمـع ده ، د (نمـر وغيـره) د راختلـو ځايونـه ، اوړې كښـې نمر يـو ځـاے نـه راخېـژي او ژمې كښې د بل ځاے نه .ددغه دواړو ځايو تر مېنځه هره ورځ دنورو راختلو ځايونه مشارق بللے شي.

**مشاطه** :- (مش + شا + طه)(ع ، اس ، مو ، جـــطې) هغه نائينه او سنګاره چې د ښځو ډول سنګار برابروي .خصوصاً وېښتـهٔ ورلـه پـه ښكلي ډول كمځې كوي.ډمه هم ورته وئيلې شي.

هغه مخ چې مادر زاد ښائسته نهٔ وي

مشقت د مشاطـې واړه مـــردار كا (رحمان بابا)

**مشاطګي** :- (مش + شا + طه + ګي)(عف ، تر ، اس ، مو) د مشاطې پېشـه ، د ښځو د وېښتو د سمولو يا د سنګار كولو كار روزګار.

**مشاعر** :- (م +شا + عر)(ع،اس، ج) د ,, مشعر ،، جمع ده . د عبادت ځايونه ، احكام.

**مشاعره** :- (م + شا + ع + ره)(ع،اس ، مو ، جـــــرې) د شاعرانو يو ځاے كښې جمع كېدل او خپل خپل شعرونه اورونه.

**ـــــ كول** :- شاعران يو ځاے جمع كول ، يا د شاعرانو يو ځاے كښې جمع كېدل او خپل خپل كلام اورول.

**مشاغل** :- (م + شا + غـل)(ع ، اس ، ج) د ,, مشـغله ،، جمع ده .مشـغلې ، شغلونه

**مشافهه** :- (م + شا + ف + هـ)(ع،اس ، مو، جـــهې) خولـهٔ پـــه خولـهٔ خبرې كول ، مخ په مخ خبرې كول.

**با ، الـــ** :- (بلـــــ)(ع ، تر ، تف) خولـهٔ پـه خولـهٔ يا مـخ پـه مـخ خبره كول. مخامخ په مخامخ خبرې كول.

**مشاق** :- (مش + شا + ق)(ع ، صف ، مذ ،مو ــــه) ډېر مشتق والـه ، ډېر ماهر،خپل كار كښې ډېر وارد ، مړنے.

**مشاقي** :- (مش + شا + قي)(ع ، اس ، مو) مشق لرنـه ، خپـل كـار كښـې مهارت ، ډېره تجربه كاري. مړنتوب ، خپل كار كښې تكړه والے.

**مشاكل** :- (م + شا + كل)(ع ، اس ، مذ) هم شكله ، مشابه په عروضو كښې د يو بحر اصطلاحي نوم دے .دې تـه مشـابه ځكـه وائي چې دا د ,,بحر قريب ،، په شان دے .فرق دا دے چې د بحر قريب وزن مفاعيلن مفاعلن فاعلان دے.او ددې بحر فاعلاتن ,,مفاعيلن مفاعيلن ،، دے.

**مشاكلت** :- (م + شا + ک + لت).

**مشاكله** :- (م + شا + ک + ل)(ع ، اس ، مو) هم شكله يا مشابه ,, بودنـه ،، پـه علم بديع كښې د يو صنعت نوم دے چې دوه څيزونـه يو ځائې ذكر كړے شي او چې كـوم الفـاظو سره ورمبنـے يـو څيـز تعبيـر شـوے وي هـم هغـه لفظونو سره بل څيز هم تعبير كړي .هغـه چې پـه بحث كښې د مخالف د اعتراض د جواب دپاره هم د هغهٔ استعمال كړے لفظ استعمال كړے شي.(په قرآن پاک كښې ددې صنعت استعمال ډېر شوے دے).

**مشال** :- (م + شا + ل)(اس ، مذ ، جـونه) د ,, مشعل ،،،ينده شكل دے . ډيوه ، هره هغه رڼا چې د خلقو چاپېريال او لار روښانه كوي.

**ـــــ داني** :- (ــــ دا + ني)(فپ تر ، اس ، مو) هغه لوښے چې پـه كښـې مشـال ودرولے شي. ډيوټ.

**مشـام** :- (م + شـا + م)(ع ، اس ، ج)د ,, شـم ،، جمـع ده .د بوئنولـو د قـوت ځاے / اندام ، د بوئين اخستو انداز ، دماغ.

**ــــ جان** :- (ـــــ (م) جا + ن)(عف ، تر،اس،مذ) مراد ترې دماغ دے.

**ــــ نيول** :- پوزه بندول.

د هجران ګنده بويې مې مشام وينو

د وصال نسيم ارسال كړه عنبر بويه (حافظ)

**مشاور** :- (م + شا + ور)(ع ، اس ، فا ، مذ ، مو ــــه) مشـوره كوونكے ، صلاح مصلحت كوونكے .د ملګرو رائې اخستونكے.

**مشـاورت** :- (م + شـا + و + ر + ت)(ع ،اس،مذ،جـــونـه) مشـوره اخسـتل، مصلحت كول ،ملګروسره صلاح كول.

**مجلس ــــ** :- (مج + لس ـــ)(عف ، تر ، اس ، مذ) ناسته سره راغونډېدل.

**مشـاورتي** :- (م + شا + ور + تـي)(ع ، پ تر ، صـف) مشـورې والـه ، اصـلاح مصلحت واله.

**ـــ كونسل** :- (ـــ كو + ن + سل)(اس ، مذ ، جــونه) هغه كونسل يا مجلس كوم چې د صلاح مشورې وركولو كار كوي .مشورې والـه كونسـل يا مجلس

**مشاوره** :- (م + شا + و + ره)(وـــ مشاورت).

**مشـاوري** :- (م + شـا + و + ري)(عـپ ، تـر ، صـف) مشـورې سـره متعلـق ، مشورې ته منسوب ، د مشورې هڅه ، د مشورې واله.

**مشاهده** :- (م + شا + هـ + ده)(ع ، اس ، مو ، جـــدې/ات) كتنه ، ليدنه ، د چا په ملګرتيا كښې حاضرېدنه.(تصوف) د صوفي هغه حالت چې هغه په كښې د خداے د پاک نورويني .(د خداے پاک نور هېڅ څوک نشي ليدے!)

**ـــــ كول** :- پـه سترګو ليـدل ،كتـل ، د نظره ويسـتل . د زړهٔ پـه سـترګو (بصيرت) ليدل.

**مشـاهره** :- (م + شا + هـ + ره)(ع ، اس ، مو، جـــــرې) مياشـتيزه تنخـواه ، معاوضه يا اجرت.

**مشاهير** :- (م + شا + هي + ر)(ع ، اس ، ج) د ,, مشـهور ،، جمع ده .هغـه خلق چې د خپلو ځينو لوړو كارونو له كبله ئې لوے نوم ګټلے وي نومـوړي خلق ، نوموړي ، نوميالي ، مشهور خلق.

**مشـــائين** :- (م + شــا + ئــي + ن)(ع ،اس، ج) د ,, مشـــائي ،، جمـــع ده . ګرځېدونكي .هغه حكماء چې پخوا به يو ځاے بل ځاے ګرځېدل او د يو عالم ، بل عالم نه به ئې يو ځاے بل ځاے زدكړه كوله . هغه حكيمان چې

د ثیزونو حقیقت به ئې د دلائلو سره ثابتولو ـ هغه ډله چې د ارسطو د افکارو منونکې ده ـ

**مشایخ** :- (م + شا + یخ) (ع ، اس ، ج) د ,,شیخ ،، جمع ده ـ شیخان ، نیک خلق ، صوفیان ، بزرگان ، (ځینې وائي چې دا د مشیخه جمع ده او مشیخه د شیخ ـ په دې صورت کښې دا لفظ جمع الجمع جوړېږي) ـ

**مشایعت** :- (م + شا + ئ + ع + ت) (ع ، اس ، مذ) جلب ، د رخصتولو په وخت مېلمه سره یو څو قدمه تلل ـ مېلمه سره تر یو حده (دروازې یا د خپلې علاقې تر حده) پورې تلل او بیا ئې رخصتول ـ پیروي ، تعظیم ـ

**ــــ کول** :- جلب کول ـ

**مشبک** :- (م + شب + بک) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) سورو واله ، هغه ثیز چې په کښې ډېر سوري وي ، جالي دار ـ

**مشبه** :- (م + شب + به) (ع ، صف) تشبیه ورکړے شوے ، د چا په شان یا د چا په رنګ وګرځولے شۀ ـ هغه ثیز چې بل کوم ثیز سره ئې یو شان والے وښودلے شي

**ــــ کول** :- تشبیه ورکول ، یو شان والے ښودل ، یو شان ګرځول ـ

**ــــ به** :- (ـــــ ب + هي) (ع ، تر ، اس) هغه ثیز چې د بل ثیز ورسره تشبیه ورکړے شي ـ هغه ثیز چې ورسره تشبیه ورکړے شوې وي ، نسبت ورکړے شوے وي ـ

**مشت** :- (مش + ت) (ف ، اس ، ج ـــــ ونه) موټے ، د سوک شکل ، دومره مقدار چې په یو موټي کښې راځي ـ

**مشت** :- (مش + ت) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) مېشه ، اوسېدنه ، ابادیدنه ـ

که دې مشت په زړۀ کښې ښهر د عشق نۀ دے
همېشه مې لـــــه خـــولې خبرې شور په څۀ ؟ (حمید)

**ــــ پر** :- (ـــ(ت) + پر) (ف ، تر ، اس ، مذ) د وزرو یا د بڼو یو موټے ، مرغۍ (محاورتاً)

**ــــ خاک** :- (ـــــ (ت) خا + ک) (ف تر ، اس ، مذ) د خـــاورو یـــو مـــوټے ، محاورتاً : انسان بني آدم ـ

**ــــ زن** :- (ـــــ زن) (ف تر ، صف) سوک ورکوونکے ، موټے وهونکے ، جلق وهونکے ، په لاس ځان خلاصول یا مني ویستل ـ

**ــــ زني** :- (ـــــ ز + ني) (ف تر ، اس ، مو) (ف) په سوکونو یو بل وهل ، مشت بازي ، باکسنګ ـ موټي وهنه ، په لاس ځان خلاصونه ـ

**ــــ مال** :- (ــ ما+ل) (ف ، تر ، اس ، مذ) د بدن کلک کلک مښل یا مړل ـ

**ــــ مالي** :- (ــ ما+لي) (ف ، تر ، اس ، مو) بدن کلک کلک مښنه ـ

**ــــ وګرېوان** :- (ـــــ تو +ګ + رې + وا +ن) (پ تر ، تف) د دوؤ کسو یو بل سره د ګرېوانونو نه نیول ـ سره نښتل یا په جنګ کېدل ـ

سبا بیا مشت و ګرېوان وي له خوبانو
که نن وکاندي حمید سل سوګندونه (حمید)

**یک ــــ** :- (یک ـــــ) (ف ، تر ، صف) یو موټے ، د موټي په شان یو بل سره کلک شوے ـ په اتفاق ، متحد ـ د یو موټي په مقدار ، په یو ځاے ، ثېلمې ، ټول ټال ـ

**مشتاق** :- (مش + تا + ق) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) شوق لرونکے ، خواهش لرونکے ، ارزومند ، خواهشمند ـ مئین ، عاشق ـ

**مشتاقي** :- (مش + تا + قي) (ع پ ، تر ، اس ، مو) شوق لرنه ، اشتیاق ، ارزومندي ـ

**مشتبه** :- (م + ش + ت + ب + ه) (ع ، صف) هغه چې په کښې څۀ شبه وي ـ شکي ، مشکوک ـ

**مشتت** :- (مُ + ش + ت + ت) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) خـــــــور وور ، پرېشانه ، پراګنده ـ متردد ـ

**مشترک** :- (مش + ت + رک) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغه ثیز چې ګڼ کسان په کښې شریک وي ـ د شریکې ثیز ـ شاملات ـ

**ــــ حس** :- (ـــــ حس) (عف ، تر ، اس ، مذ) عامه پوهه ، کامن سنس ـ

**مشـــترک** :- (مـــش + ت + رک) (ع ، اس ، مـــذ ، ج ـــــ ان / یـــن) شـــرکت لرونکے ، شریکوال ، برخه اخستونکے ، حصه دار ـ

**مشـــترکین** :- (مـــش + ت + ر + کـــي + ن) (ع ، اس ، ج) اشـــتراک لرونکـــي ، شریکوالان ، برخه اخستونکي ـ

**مشتري** :- (مش + ت + ري) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان) اشتراء کوونکے ، خریدار ، په بیعه اخستونکے ـ د یو روڼ غټ ګرځینده ستوري نوم دے ـ چې د نمر نه اتۀ ځلو ښېښت کروړه او د ېرش لکه میله فاصله په خپله لاره حرکت کوي ـ د نمر نه چاپېره یو چکر قریباً زمونږ په دولس کاله کښې ترسره کوي ـ قطر ئې ۸۶۵۰۰ میله دے او زمونږ د زمکې نه دومره لویه سیاره ده چې اتۀ سپوږمۍ ترې چکرې وهي ـ د ماهرینو خیال دے چې دغه سیاره لا په ویلې یا مائع شکل کښې ده ـ دغې ته۸ په انګرېزۍ کښې جوپیټر وئیلے شي ـ

**مشتعل** :- (مش + ت + عل) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) لمبه شوے ، په اشتعال کښې راوستے شوے ـ غصه کړے ، قهریدولے ـ

**ــــ کول** :- لمبه کول ، راپارول ، غصه کول ، لمسول ، هڅول ـ

**مشتغل** :- (مش + ت + غل) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) په شغل کښې ، مشغول ، مصروف ، مشغل لرونکے ـ په څۀ کار کښې اخته پخته ـ

**مشتق** :- (مش + تق) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) اشتقاق شوے ، راوتې ، هغه کلمه (ټکے) چې د بلې کلمې نه راوتے وي ـ یعنې د بلې کومې کلمې نه جوړه شوې وي ـ لکه لیکل (مصدر) نه لیکي / لیکم او نور ـ

**مشتقات** :- (مش + ت + قا + ت) د ,, مشتق ،، جمع ده ـ

**مشتمل** :- (مش + ت + مل) (ع ، صف ، مذ ، ج ـــــ ه) هغه څۀ چې په کښې مختلف ارکان یا ثیزونه شامل وي ـ رغ شوے ، جوړ شوے ـ لکه فلانۍ کمېټۍ په فلانې فلانې کس مشتمله ده ـ یعنې فلانې فلانې کسانو نه جوړه ده یا رغ شوې ده ـ یا فلانے سبق د فلانې فلانې ثیز نه جوړ دے یا رغ شوے دے ـ لکه واټر سبق په شپږو ګلاسونو او یو جګ مشتمل دے ـ

**مشته** :- (مش + ته) (ف ، اس ، مو) د موچي هغه اوزار چې پرې څرمن ټکوي او نرموي ـ ډبلۍ ، د ډانډت یا ډینډت مار ډبلۍ ، چې پرې د خپل ډانډت تار وهي او مالوچ پرې نولي یا پاغونده کوي ـ

**مشتهر** :- (مش + ت + هر) (اس ، مف ، مذ ، مو ـــــ ه) د اشتهار په ذریعه اعلان کړے شوے ـ مشهور کړے شوے ـ ډنډوره کړے شوے ـ

**مشـتهر** :- (مش + ت + هر) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) د اشتهار په ذریعه اعلان کوونکے ، مشهور کوونکے یا ډنډوره کوونکے ، شهرت کوونکے ـ

**مشتهٰی** :- (مش + ت + ها) (ع ، اس ، مو ، ج ـــــ ګانې) د خوښـــې ثیـــز ، هغه څۀ چې مینه یا اشتها ورته کېږي ـ مرغوب ثیز ـ

**مشتهي** :- (مُشْ + ت + هي) (ع ، صف) اشتها لرونکے ، خواهش کوونکے ، ارزومن ، رغبت لرونکے ـ

**مشتهیات** :- (مُش + ت + هي + یا + ت) (ع ، اس ، ج) د ,, مشتهٰی ،، جمع ده ـ خواهشونه ، ارزوګانې ، د زړۀ غوښتنې ، خوښ ثیزونه ، (هغه ثیزونه چې ارزو یا خواهش ئې وکړے شي) ـ

**نفساني ــــ** :- (نف + سا + ني ـــــ) (عف ، تر ، اس ، ج) نفساني خواهشات ـ

**مشجر** :- (مُ + ش + جر) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغه کپړه وغېره چې د ونو

بوټو ګلونه پرې جوړ شوي وي.

**مشحون** :- (مش + حو + ن)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) ډک ، ډک شوے ، پُر لکه : مشحونه کښتۍ.

چې د نوح بېړۍ مشحونه

لـــه طوفانه شوه مامونه (حافظ)

**ـــــ کېدل** :- ډکېدل ، پُر کېدل ، مالامال کېدل.

چې ښادۍ د دواړو کونو دي

پرې به ددۀ شي خونه مشحونه (خوشحال)

**مشخص** :- (م + شخ + خص)(ع،اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) تشخیص شوے ، معلوم شوے ، ښکاره.پېژندلے شوے ، په نخښه کړے شوے. خامي.

**ـــــ کول** :- تشخیص کول ، تمیز کول ، تعین کول ، معلومول ، خاص کول.

**مشخص** :- (م + شخ + خص)(ع،اس،صف،مذ،مو ـــــ ه) تشخیص کوونکے ، معلوموونکے ، تمیز کوونکے ، پېژندونکے ، خاص کوونکے .هغه نخښې چې په الفاظو وغېره لګولے شي.

**مشدد** :- (م + شد + دد)(ع ، اس ، مف ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) شد واله ، شد ورکړے شوے.هغه تورے چې د شد (ـّ) علامت پرې لګېدلے وي.دغه تورے غبرګ لوستے شي.

**ـــــ کول** :- په يو توري ،،شد ،، لګول . کلکول ،ترړل ، مضبوطول ، غبرګول ، زور ورکول.

**مشدی** :- (م + ش + دی)(صف ،مو) د اصلاً مشهدی دے .هغه لونګۍ (رېښمین پټکي) چې په مشهد نومي ښهر کښې جوړېږي .پخوا ددغې ښهر لونګۍ ډېرې ښکلې او مشهورې وې .(ځينې خلق پوره لفظ ،،مشدی لنګۍ،، وائي).

**مشر** :- (م + شر)(اس ، مذ ، ج ـــــ ان) په عمر کښې د بل نه زیات ، د زیات عمر واله ، بزرګ .(د کشر ضد دے) معزز، عزت واله ، د احترام وړ ، محترم ، په درجه یا عهده کښې پورته.

**ـــ تابه** :- (ـــــ تا + ب) مشرتوب ، مشرۍ.

**ـــــ توب** :- (ـــــ تو + ب)(پ ، تر ، اس ، مذ) مشرۍ.

**ـــــ کشر پېژندنه** :- په مشر او په کشر کښې تمیز کول.د مشر لحاظ او ادب کول.د مشر احترام کول.

**ـــ کشر نۀ پېژندنه** :- په مشر او کشر کښې فرق نۀ کول. محاورتاً د مشرانو لحاظ نۀ کول.د مشرانو ادب نۀ کول.

**ـــــ کول** :- مشر ګرځول ، سردار جوړول ، رهنما منل.

**ـــــ کېدل** :- سردار کېدل ، رهنما جوړېدل ، محاورتاً چالاکي کول ، ځان وړاندې وړاندې کول.

**ـــ مشر کېدل** :- مشروټي کول. محاورتاً کلان کاري کول ، چالاکي کول. لک بُوک کېدل،مخکښې مخکښې کېدل.

**مشران** :- (م + ش + را + ن)(اس ، مذ )د ،، مشر ،، جمع ده.

**مشرب** :- (مش + رب)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / مشارب) د اوبو څښکلو ځـــاے ، چینـــه وغېـــره ،دیـــن ،مذهب،مســـلک،مجلس،محفل،ډله، طور طریقه.

پـــه ظاهر باطن ئې دواړه سره جوړوي

څۀ عجب حاصه مشرب دے د رندانو (خوشحال)

**هم ـــــ** :- (هم ـــــ)(عف ، تر، صف ،مذ ، ج ـــ ان) هغه څوک چې سره يو شان مشرب لري .يو شان مذهب ، طور طریقه، مسلک لرونکي .يو مجلس یا محفل کښې ناسته پاسته کوونکې.

**مشرح** :-(م + شر + رح)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغـــه څـــه چـــې تشریح ئې شوې وي.تفصیل سره بیان شوے.هغه خبره یا عبارت چې وضاحت ئې شوے وي.

**مشرف** :- (مُ + شر + رف)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) شرف ورکړے شوے ، شرف واله.

**ـــــ کـول** :- شرف ورکـول ، شرف والـه ګرځـول ، پـه څـۀ انعـام یـا ویاړنـه نمانځل.

نـــوراني بـــــدر تابانه

په دیدار مې مشرف کړه (حافظ)

**مشرق** :- (مـش + رق)(اس ، ظـر) د طلـوع کېـدلو ځـاے ، د نمـر وغېـره د راختو ځاے ، نمر ختۀ ، د نمر د راختلو او پرېوتلو په مناسبت د زمکې هغه اړخ چې نمر ترې راخېژي .ددغې په مقابله کښې په دغه حساب مغرب دے.هغه ممالک چې د جغرافیې ختیځې ډډې ته پرېوځي.لکه ایشیائي ملکونه.

**مشرقي** :- (مـش + ر + قـي)(ف ، تـر ، صـف) مشـرق سـره تعلـق لرلـو والـه ، مشرق ته منسوب ، هغه برخه زمکه چې وقـوع ئې د جغرافیـې پـه ختیـځه اړخ کښې وي، په دغه جغرافیایي منطقه کښې وجود لرونکي وطنونه او علاقې.

**ـــــ خیـالات** :-(ـــــ خ + یـا + لا + ت)(عـف ، تـر، اس،ج) د مشـرق د خلقـو خیـالات ، د ایشـیائي ملکونـو خیـالات ،چېرتـه چـې د خلقـو د سـوچ او ژواک انداز د انسان اصلیت سره نژدې ترون لري.

**ـــــ ژبې / جبې** :-(ـــــ ژ + بې)(فپ ، تر ، اس ، ج)هغه ژبې چې په مشرقي ملکونو کښې وئیلے شي .یعني د هغو ملکونو ژبې کومې چې په مشرقي ملکونو کښې وئیلے شي او پښتو هم په کښې شامله ده.

**مشرقین** :-(مش + ر + قي + ن)(ع ، اس) د ،، مشرق ،، تثنیه ده.یعني دوه مشرقه ، دا لفظ په قرآن پاک کښې راغلے دے. هغه دوه انتهائي مقاماتچېرته نه چې په ژمي او اوړي کښې نمر راخېژي او هغې نه پس بیا مېنځ ته ستنېږي.

**مشـرک** :- (مُـشْ + رِک)(ع،صف، مـذ ، مـو ـــ ه) خداے پـاک سـره شـرک کوونکے ، خداے پاک سره د خدایۍ په اختیار ، صفاتو او کارونو نور څیزونو شریکوونکے لکه : بت پرست ، نمر پرست یا انسان یا د انسان قبر ته داسې درجه ورکول چې د خداے نه بغېر د بل چا خاصه نۀ وي.

**مشـروب** :- (مـش + رو + ب)(ع ، اس ، مـذ ، ـــــ ونـه / ات) د څښـکلو څیـز ، شربت هغه څۀ چې څښکلے شوي وي.

**مشروټ** :- (مش + رو + ټ).

**مشروټے** :- (ـــــ ټے)(اس ، مذ ، ج ـــــ ټي) هغه څوک چې د خپل عمر یا حېثیت نه اوچت ځي او دا د قدرتي صلاحیت او یا ذاتي خوبیانو په وجه نۀ وي بلکې د کم عقل تیا او بې وقوفي په سوب وي . پښتو محاوره کښې ورته ،،کلان کار،، هم وئیلے شي .،، کلان کار،، د فارسي ترکیب دے.،،کلان،، لوے یا غټ ته وائي او ،،کار،، کار ته وئیلے شي.

**مشروټي کول** :-د کشر یا کم حېثیت واله سړي ځان په مشرانو یا لویو صاحب حېثیـت والـه ؤ کښـې شـمېرل .کـلان کـاري کـول ،خـواه مخـواه ځـان مشر مشر کول.

**مشروح** :- (مش + رو + ح)(ع، اس ، مف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغه چې شرحه ئې شوې وي.مشرح ، مفصل.

**مشروط** :- (مش + رو + ط)(ع ،اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه څۀ چې پرې شرط ترلے شوے وي. هغه څۀ چې وجود او ثبوت ئې څۀ خاص حالاتو سره ترلے وي.یا پرې منحصر وي.

**ـــــ کول** :- د يو کار یا عمل کول نۀ کول څۀ بل کار یا څیز سره ترړل.دا د چا

د خپل کار سره هم کېدے شي او د بل چا هغې سره هم.

**مشروع** :- (مش + رو + ع) (ع،اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) د شرعي مطابق، د شرعي سره سم ، جائز ، روا.

**ـــــ گڼل** :- د شرعي مطابق گڼل ، جائز گڼل ، روا گڼل.

**مشره** :- (مش + ره) د ,,مشر،، مؤنث دے.او ,,مشر،، ته مخاطب کېدلو په وخت مخاطبه هم ده.

**مشري** :- (م + ش + ري) (پ تر ، اس ، مو) مشر والے ، مشرتوب ، سرداري ، ليډري د ,, کشري ،، متضاد دے.

**ـــــ کول** :- سرداري کول ، رهنمائي کول ،د کور، کندي ، کلي او حتٰی وطن لـه خوا چا تـه د ورکړے شـوؤ اختيـاراتو ، د هغـوي د مقاصدو او مفادو سره سم استعمالول.د خلقو رهنمائي کول ، د خلقو خدمت کول ، د هغوي لاتچي هوارول اود مفادو ئي خيال ساتل او په دغه لاړ او کار کښې هر قسم قرباني ورکول او تاوان ته په روڼ تندي غاړه اېښودل.

**مشرۍ** :- (م + ش + رۍ) د ,, مشرے ،، مؤنث دے.

**مشرۍ** :- (م + ش + رۍ) د ,, مشري ،، جمع ده . د ,, مشرۍ ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي . لکه د وزير خارجه په ,, مشرۍ ،، کښې يو وفد يا هېئت سعودي عرب ته روان دے او نور.

**د ـــــ پټکے (ور) پسرول** :- چا تـه يا د چا د مشر په مرګ ئي کشر يا جانشين ته د مشرۍ اختيارات ورکول او هغه د خپل مشر په حېث د منلو اظهار . دغې دپاره يو غونډه کولے شي چې په کښې د کلي ، کندي، قام قبيلې ټول نمائندګان او نور حاضر وي او نوي مشر ته باقاعده يو پټکے ورپسر کړے شي . (لکه څنګه چې ,, تاج پوشي ،، کولے شي) موجود خلق (نمائندګان) ورسره بيعت يا لاس نيوے هم اوکړي او داسې د خپلو نمائندګانو په شان د هغوي ټول قوم او قبيله هم د دغې بيعت پابند ګڼلے شي.

**د ـــــ ځاے** :- (د ــــ (د) ځا + ئے).

**د ـــــ کور** :- (د ـــــ کو + ر) (پ تر ، اس ، مذ) د مشر ځاے يعني کور او حجره وغېرهچېرته چې هغه دمشرۍ کار کوي. هغه ځاے چې د خلقو خدمت په کښې کېږي.لاتچې او شخړې ئي هوارېږي. محاوره کښې (د عزت او احترام دپاره) دغه ځاے ته د مشرۍ ځاے، کور وئيلے شي.

**مشرے** :- (م + ش + رے) د ,, مشر ،، بدل شکل دے . د صفت په طور راځي . لکه : مشرے زوے.

**مشعر** :- (مش + عر) (ع ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) څرګند حس لکه سترګې يا غوږونه چې اولنے دغه ليدل او دغه دوېم اورېدل کوي. محاورتاً عقل او ذهانت ته وئيلے شي.

**مشعر** :- (مُش + عرْ) (ع ،اسم ، مذ ، مو ـــ ه) (په خپل حالت) حال ويونکے ، اطلاع ورکوونکے ، څرګندوونکے ښکاره کوونکے او داسې نور.

**ـــــ الحرام** :- (ــ (ال) + ح + را + م) (اس ، مع) په مکه معظمه کښې هغه ځاےچېرتـه چې د حج په موقع په خپل وخت حاجيان سرونه خريي او قربانۍ کوي.

**مشعشع** :- (مُ + شع + شع) (ع ، صف ،مذ ،مو ـــــ ه) روښانه،ځلقنده ، هغه چې شغلې ترې ځي.پړقنده.ښائسته ، شاندار.

**مشعل** :- (مش + عل) (ع،اس،مذ ،ج ـــ ونه) اوګورئ ,, مشال ،، .

**ـــــ بردار** :- (ـــ بر + دا + ر) (عف ، تر،اس، مذ ،ج ــ ان) مشعل لرونکي / کے.

**ـــــ چي** :- (ـــــ چي) (و ـــ مشعل بردار).

**مشغله** :- (مش + غ + ل) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ لې / مشاغل) شغل ، هغه کار چې څوک په کښې مصروف وي. د شغل کار ،مشغولا ، د سړي د خوښې کارونه.

**مشغول** :- (مش + غو + ل) (ع ، اس،مف ، مذ ، مو ـــ ه) شغل کښې اخته ، مصروف ، په کار کښې بوخت ، په کار کښې لګيا.

**ـــ تيا** :-(ـــ ت + يا) (عپ تر ، اس ،مو) د شغل يا مصروفيت څۀ څيز يا کار . مشغولا.

**ـــــ کېدل** :- (و ـــــ مشغولېدل).

**مشغولا** :- (مش + غو + لا) (اس، مو ، ج ـــــ ګانې) شغل ، هغه کار چې سړے په کښې مصروف وي.مصروفيت ، مشغله. توده توده حلوا د زوم د خواښې مشغولا ،، (متل).

**مشغولول** :- (مَش + غو + ل + ول) په کار کښې بوختول (په کار کښې) مصروف کول ، په کار اخته کول.

**ځان ـــــ** :- چې ضروري يا د کولو کار نۀ وي نو ځان په کوم کار يا لوبه وغېره کښې مصروفول.په کوم کار يا لوبه وغېره کښې وخت اړول. وخت تېرول ، ځان اوزګار نۀ پرېښودل.

**مشغوله** :- (مش + غو + له) (و ـــــ مشغولا).

**مشفق** :- (مش + فق) (ع اس ، صف، مذ ، مو ـــ ه) شفقت کوونکے ،مهربانه ، مينه کوونکے.

**مشفقانه** :- (مش + ف + قا + نَ) (ع ، ف تر، تف) په شفقت سره ، په نرمۍ سره،د مهربان په انداز،د مهربانۍ په طريقه.

**مشق** :- (مش + ق) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (د ښـۀ تجربـو پخولـو او د مهارت حاصلولو دپاره يو کار) بيا بيا کول ، ياد يا عمل ښۀ پخول.

**ـــــ کول** :- ياد يا د عمل عادت ښه پخول.

**مشقت** :- (م + شق + قت) (ع ،اس، مذ ، ج ـــ ونه) سخت کار، محنت ، خواري.

**ـــــ کول** :- سخت کار کول ، محنت کول ، خواري کول. د مـزدورۍ کـار کول ، مزدوري کول.

**قېد با ــ** :- (قې + د + با ـــــ) (عف ، تر ، اس ، مذ) هغه قېد چې دقېدي نه په کښې سخت کار هم اخيستے شي.

**محنت ـــــ** :- (مح + نت) (ع ، تر ، اس ، مذ) دواړه تقريباً هم معنٰی ټکي دي .دوېم لفظ د اولني د تاکيد دپاره راځي . خواري ، محنت ، مزدوري ، په محاوره کښې دواړه سره خوا په خوا راځي.

**محنت ـــــ کول** :- خواري مزدوري کول.په سخت کار (خپله) روزي ګټل. کار روزګار کول.

**مشقي** :- (مش + قي) (عف ، تر، صف) مشق سره تعلق لرونکے ، مشق ته منسوب ، مشق واله.

**ـــــ سوالونه** :- (ـــــ س + وا + لو + نه) (فپ تر،اس،ج) هغه سوالونه چې د درس په کتـاب کښې د هـر سبق نـه وروستـو ورکـولے شي -چې د لوستونکو مشق پرې وشي.

**مشک** :- (مش + ک) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د څرمنې هغه ګوډے چې اوبۀ په کښې وړے راوړے شي. مشکي يا بتيارے چې د اوبو ډکولو دپاره دڅرمنې لوښے استعمالوي.

**مشک** :- (مُشْ + ک) (اس ، جم) دا ئي فارسي املا ده . ددې پښتو املاء ,, مُښک ،، ده . هغه خوشبويه شے کوم چې د خاص قسم هوسۍ د نوم يا د ګېډې د کځوړې د وينو نه اخستے شي . کستوري . (وائي چې په مشکو سره زخم خرابېږي ځکه شاعرانو په دې مفهوم کښې استعمال کړے دے).

**ـــــ افشان** :- (ـــــا + ف + شا + ن) (پ تر، صف، مذ، موـــــه) مُشک بښېندونکے / کې / کي.

**ـــــ بار** :- (ـــــبا + ر) (ف تر، صف، مذ، موـــــه) مشک وَرَوونکے، خوشبوئي خورَوونکے.

**ـــــ دانه** :- (ـــــدا + نَ) (ف تر و اس، مو) د يوې ونې د مېوې نوم دے چې په داروګانو کښې استعمالېږي.

**ـــــ کافور کول** :- تور وېښتۀ سپينول.

**ـــــ نافه** :- (ـــــنا + فه) (ف، تر، اس، مو) هغه مشک چې د يوې خاص قسم هوسۍ د نوم نه تر لاسه کولے شي.

**د چين ـــــ** :- (د، چي + نـــــ).

**د خطا ـــــ** :- (د، خ + طا ـــــ).

**دختن ـــــ** :- (د، خُ + تـن ـــــ) (ف پ تر، اس، جم) دا درې واړه وطنونه د اعلٰی قسم مشکو دپاره مشهور دي.

**مشکواة** :- (مش + کوٰ + ت) (ع، اس، مذ، مع) د حديثو د يو کتاب نوم چې د شپږو مستندو کتابونو (صحاح سته) په انتخاب مشتمل دے. ډېوټ، دېوال کښې طاقچه، ډېوټ چې په کښې شمع / چراغ / ډېوه اېښودلے شي.

**ـــــ المصابيح** :- (ـــــ (ال) م + صا + بي + ح) (ع، تر، اس، مع) د مشکوٰة (شريف) پوره نوم دے.

**مشکار** :- (مش + کا + ر) (اس، مذ، جـــــ ان) دا اصلاً ,,ښکار،، خو دغه فارسي املاء سره هم ليکلے شي - ولې پسته لهجه کښې دغسې وايۀ شي، بازونو له د ښکار د تربيت ورکوونکے، د ښکار د تربيت دپاره د بازونو ساتونکے، (د ,, مير شکار،، مخفف دے).

مشکاران باز په منګل اخلي نۀ کارغه مشګيرک

کينه پـــــه بـرخه د بـــــاز ولې کړې سفله غربه (حافظ)

**مشک بېد** :- (مش + ک + بې + د) (پ، اسم، صف، مذ) ورو کے مُشک، مشکے، مشکونړے.

**مشکک** :- (مش، کک) (اس، جم) تراوۀ کور، تراوۀ انګور.

**مشکل** :- (مُش + کل) (ع، صف، مذ، موـــــه) ګران، دشوار، سخت، پېچيده، جنجالي.

**ـــــ آسان** :- ګرانه حل کول، د ګران کار دپاره اسانه لار رايستل - مدد يا کمک کول.

**ـــــ ګشا** :- (ـــــ کُ + شا) (عف، تر، اس، مع) ګرانه اسانوؤنکے.

**مشکلات** :- (مش + ک + لا + ت) (اس، مو، ج) د ,, مشکل،، جمع ده.

**مشکلاتو** :- (مش + ک + لا + تو) د ,, مشکلات،، بل شکل دے - چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ـــــ هوارول** :- د ګرانو کارونو علاج کول يعني حل ئې راويستل - د شخړو سمول، په ګرانه کښې د چا امداد کول.

**په ـــــ برے موندل / ميندل** :- د ګرانو نه وتل - د مسائلو يا مشکلاتو حل بيا موندل، مشکله حل کول.

**مشکله** :- (مش + ک + ل) د ,, مشکل،، مؤنث،، دے - ګرانه، سخته، دشواري.

**ـــــ ده** :- جمله، ګرانه ده - دا کار ناشونے غونـدې دے - دا کار ګران دے - لکه مشکله ده چې فلانے راشي - د نفي په معنٰی کښې وئيلے - که څوک وائي چې فلانے کار نن کېږي نو بل کس ورته وائي چې مشکله ده که نن اوشي.

**په ـــــ** :- (پ ـــــ) (پ تر، تف) په ګرانه - لکه: په مشکله به غرته خېژي - د نفي په معنٰی کښې لکه: دغه لار به په مشکله څلور ميله وي - يعني څلور ميله به نۀ وي.

**مشکنه** :- (مش + ک + نړ) (اس، مو، جـــــ ړي) د لاګ يا د کانچ جوړې شوې ورې ورې رنګ پرنګ منکې - جوته مرغلره ورې ورې مرۍ.

**مشکنے** :- (مش + ک + نے) (اس، مذ) يو بوټے دے چې د ډکو نه ئې جاروګانې جوړولے شي.

**مشکنړۍ** :- (مُش + کن + ړۍ) (و ـــــ مشکونړۍ).

**مشکنړے** :- (مش + کُن + ړے) (اس، مذ) خاص هوسے يا اوسے نامه کښې مشک کېږي - مشکونړے - غبنتلے، کوټلے، ډک، په جوين کښې، په ځوانۍ کښې.

**مشکور** :- (مش + کو + ر) (ع، اس، مف، مذ، موـــــه) شکر ګذار، شکر ادا کوونکے.

**مشکوک** :- (مش + کو + ک) (ع، اس مف، مذ، موـــــه) هغه چې په کښې شک وي.

**مشکوله** :- (مش + کو + ل) (اس، م، جـــــ لې) د اوبو ورو کے مشک، مشک ګوټے، چې مشکوټے وئيلے شي.

**مشکونړۍ** :- (مش + کو + ن + ړۍ) (اس، مو) د مشکو نافه، د مشکو کڅوړه - د خاص قسم هوسۍ نامه چې خوشبوداره وينه په کښې چکه کېږي او بيا د خوشبويۍ په طور استعمالولے شي.

**مشکونړي** :- (مش + کو + ن + ړي) (اس، جم) تور وېښتۀ چې الوول شوي وي - د هلک نوي راټوکېدلي وېښتۀ.

**مشکي** :- (مش + کي) (ف تر، صف) د مشکو درنګ، تور، سياه، د تور رنګ اس.

**مشکے** :- (مش + کے) (اس، مذ، جـــــ کي) د تور رنګ اس، (اس).

**مشکے** :- (مُش + کے) (اس، مذ، جـــــ کي) توره مچۍ چې لشه نۀ لري - بې لشې توره مچۍ - کالو، مار مچۍ، ماکو (هغه مچۍ چې د ژمي په سر ئې لشه وسوځي - او رنګ ئې هم تور شي.

**مشکيزه** :- (مش + کي + زه) (ف، اس، مو، جـ زې) ورو کے مشک، مشک ګوټے.

**مشکين** :- (م + ش + کي + ن) (ف تر، صف، مذ، موـــــه) د مشکو په شان خوشبويۍ واله - مشکي، د مشکو په شان رنګ واله، تور، هغه (کپړه وغيره) چې مشک پرې لګولے يا پورې کولے شوي وي.

دا څــۀ زلفې دي مشکنې

چې هم مېنک دي هم عنبر (رحمان بابا)

**مشل ورګے** :- (م + شل + ور + ګے) (اس، مذ، جـــــ ګي) هغه ګـډې چېلۍ چې ورې وېښتۀ ئې غېږه يا ځېره يا شډل وي.

**مشمش** :- (مِش + مِش) (ف، اس، جم) مشهوره مېوه، خورمانۍ، خوبانۍ.

**مشمشه** :- (مش + م + شَ) (اس، مو، جـــــ شې) افواه، پروپېګنډه، د دروغو خبرې خوورول.

**مشمشې** :- (مش + م + شې) د ,, مشمشه،، جمع ده.

**ـــــ کول** :- افواګانې خوورول، پروپېګنډې کول - د دروغو خبرې خوورول.

**مشمع** :- (م + شم + مع) (ع، اس، مف، مذ، موـــــه) مومي کپړه، هغه کپړه چې موم پرې لګېدلي وي او اوبۀ ترې نه اووځي - موم واله، مومي، موم جامه.

**مشمول** :- (مش + مو + ل) (ع، اس مف، مذ، موـــه) شامل کړے شوے، شامل شوے، شامل، شريک، ورګډ کړے شوے، ور يو ځاے کړے شوے.

**مشمولين** :- (مش + مو + لي + ن) (اس، مذ، ج) د ,, مشمول،، جمع ده - شامل شوي شريک شوي - شريک، ورګډ شوي - شامل.

**مشموم** :- (مش + مو + م)(ع، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) بوين کړے شوے ، خوشبونيه ، خوشبوداره معطر.

**مشن** :- (م + شن)(انگ،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) اسالت ،استونه ، سفارت ، د پادريانو د استوگنې ځاے،کار، مهم ، چې د کوم دپاره يو کس يا ټولے مقرر کړے شوي وي.

**مشنري** :- (مش + ن + ري)(انگ ، اس ،مذ ) هغه سړے چې د مذهب د تبليغ کار کوي۔مبلغ ، مبلغ پادري.

**مشنگ** :- (م + شن + گ)(اس ، جم ) يو قسم غله چې د دال په طورپخولے شي.

**مشنګه** :- (م + شن + گ)(اس ، مو، ج ـــ گے) د مشنگ په شان يو بوټے چې په خپله د غنمو په فصل کښې پېدا کېږي۔او تخم ئې د مشنګو د دال په شان وړې وړې دانې وي۔بوچړه ، تمبول.

**مشنگينه** :- (م + ش + ن + گي + ن)(اس،مو، ج ـــ نې) د مشنګو نه جوړه شوې ډوډۍ يا ډوډۍ.

**مشو** :- (م + شو)(اس ، مو، ج ـــ گانې) د پتلون په شان پرتوگ چې د غټې ستغې کپړې نه جوړولے شي.

**مشواني** :- (مش + وا + ني)(اس ، مع) مشواني هم ليکلے شي .د سېدانو يوه قبيله ده چې خپله شجره تر حضرت خواجه گېسو دراز ؒ پورې رسوي. وائي چې خواجه گېسو دراز اول د سليمان غر په خوا کښې استوگن شوے وۀ دلته کښې يوې کاکړې بي بي سره ئې نکاح کړې وۀ چې يو زوے مشوان خان ترې وزېږېدۀ .دغه مشوان خان ددې قبيلې د سر نيکۀ دے.په بلوچستان او هزاره کښې اباد دي۔ددې قبيلې لوئې لوئې څانگې دادي۔چې په بلوچستان کښې اوسي۔باتوزی ، جلال زی ، ترک ، چاچے زی ، نظر خېل ، ميان خان زی ، نذر خېل ، چاچے زی سن خېل ، چاچے زی يحيٰ خېل، فقير زی ، لودن، خواجه خېل شامير خېل ، محمد خېل ، حسن خېل ، محمد خېل سيد خېل ، محمد خېل شکور خېل ، محمد خېل گزني خېل ، او مصري زی.

**مشواني** :- (ددغه)(اس ، مع) دا خلق د باجوړ د عيسیٰ خېلو سره تړلي دي. د ځينو خلقو دا خيال دے چې تاريخي لحاظ سره دا خلق هم د هزارې د مشوانو سره يو دي.

**مشوانۍ** :- (مش + وا + ن + ړ + ۍ)(اس ، مو) د ,, مشوانی ،، مؤنث دے .د مشوانۍ قبيلې يوه ښځه يا جينۍ ده.

**مشوانۍ** :- (مش + وان + ړۍ) (اس ، مو) دوات ، هغه وړوکے شان لوښے چې په کښې د ليکلو سياهي اچولے شي۔سياهي بوتل.

**مشواني** :- (م + ش + وا + ړي)(اس ، مع ، مذ ، ج ـــ ړي) د ,,مشوانی ،، قبيلې يو فرد يا کس.

**مشورت** :- (مش + و + رت)(ع، فعل ،مذ ) صلاح ، مشوره ، سره رائې اخستل او يو کول۔سره خبره يو کول ، مصلحت.

ـــ **چي** :- (ـــ چي)(عپ ، تر، اس ،مذ ، ج ـــ ان) مشوره ورکوونکے ، د صلاح مصلحت وړ سړے.

**مشورتي** :- (مش + و + ر + تي)(صف) مشورې سره متعلق لکه : مشورتي رائې

**مشوره** :- (مش + و + ره)(ع،اس ، مو ، ج ـــ ړي) صلاح ، کنگاش ، مصلحت ، په شريکه يو تجويز.

ـــ **اخيستل / اغيستل** :- د ملگرو رائې اخستل ، تجويز اخستل.

**مشورې** :- (مش + و + رې)(اس ، مو ، ج )د ,, مشوره ،، جمع ده .د ,, مشوره ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**مشوړه** :- (ما + شو + ړه)(اس، مو،ج ـــ ړي) ماشوړه ، د اوم تار گونجۍ ، په څرخه د رېشلي شوي تار .بيضوي غونډارے چې ترې بيا اته / اټې جوړولے شي.

**جړه** ـــ :- (ج + ړ ـــ)(و ـــ ورانه مشوړه ).

**جړه ـــ نوره هم جړه کول** :- ورانه شوې مشوړه نوره هم الوول کول. مجازاً يو وران شوے کار نور هم ورانول۔گرانه نوره هم گرانول.

**سرگومه** ـــ :- (س + ر + گو + مَ ـــ)(و ـــ ورانه مشوړه ).

**ورانه** ـــ :- (و + را + نهَ ـــ)(پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ ړي) **هغه ماشوړه** چې الوول شوي وي او سر ئې نۀ را معلومېږي .محاورتاً : وران شوے کار چې د سمولو درک ئې نۀ لگي.

**مشوش** :- (مُ + شو + وَش)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) په تشويش کښې ، پريشانه ،حېران مضطربه ، فکر مند .

**مشوش** :- (مُ + شو + وش)(ع ، اس فا ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) په تشويش کښې اچوونکے ، پريشانه کوونکے ، فکر کښې اچوونکے ، په غم اخته کوونکے .

ـــ **کول** :- پريشانه کول ، په تشويش کښې اچول۔متردد کول.

مشوش کړم وچ گوگل نمژنو ستر گو
هېڅ مې نۀ زده چې بحرې يم که برې (حميد )

خوورول، پراگنده کول، گډوډ کول.

مشوش ئې کړو روزگار د پرهېزگارو
چې کاکل ئې په جبين رامشوش کړ (خوشحال)

**مشوق** :- (م + شو + وق)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) شوق پېدا کوونکے ، شوق راولاړوونکے .

**مشؤم** :- (مش + او + م)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) سپېرۀ ، منحوس.

**مشهد** :- (مش + هد )(اس،مذ ) د حاضرېدلو ځاے ، د شهادت ځاے ، د شهيدانو مقبره ، په ايران کښې يو مشهور ښار چې هلته د امام علي رضا رض زيارت دے.

**مشهدي** :- (مش + هـ +دي)(اس ، مذ ) د مشهد ښهر سره تعلق لرونکے ، د مشهد په ښهر کښې جوړېدونکې خاص کر د مشهد لنگۍ (رېښمين پټکې) پخوا ډېر مشهور وو.

**مشهدي** :- (مش + هـ + دي)(اس صف) مشهد سره تعلق لرونکے ، مشهد ته منسوب ، په مشهد کښې جوړ شوے .(په مشهد کښې جوړې شوې رېښمينې لنگۍ ډېرې مشهورې وې، مشهدۍ ).

**مشهدۍ** :- (مش + هـ + دۍ)(اس مو ) د ,, مشهدي ،، مؤنث دے . په مشهد کښې جوړه شوې۔عموماً په مشهد کښې جوړه شوې سوچه (د رېښمو ) لنگۍ ته وئيلے شي۔او عام تلفظ ئې ,, مشدۍ ،، دے .

ـــ **لنگۍ** :- (ـــ ل / لو + ن + گۍ ) هغه لونگۍ (رېښمين پټکے) چې د مشهد په ښار کښې جوړ شوے وي۔پخوا دا لنگۍ ډېرې مشهورې او ښکلې وې .,,مشهدۍ ،، هم ورته وائي.

**مشهود**:- (مش + هو + د )(ع ، اس ، مف ، مذ ،مو ـــ ه) حاضر کړے شوے ، حاضر شوے ، موجود ، ظاهر ، ثابت شوے ، څرگند ، ليدلے شوے.

**مشهور**:- (م + ش + هو + ر )(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) مشهور کړے شوے ، هغه چې شهرت ئې موندلے وي۔تر لرې لرې ئې نوم خوور شوے وي۔**هغه حديث** ، چې راويان ئې دوه يا د دوه ؤ نه زيات وي.

ـــ **کول** :- شهرت ورکول ، نوم خوورول.

ـــ **کېدل** :- شهرت موندل ، نوم وغېره تر لرې لرې پورې رسېدل .تر لرې لرې پېژندلے کېدل.

**مشهورول** :- (و ـــ مشهور کول) .

**ـــــ ده** :- (ـــ د) (جمله) افواه ده . دا خبره خوره ده . اوربدے شي ، وئيلے شي چې...

**مشهوربدل** :- (م + ش + هو + رې + دل) (و ـــ مشهور کېدل) .

**مشه** :- (م + شه) (اس ، مو ، ج ـــ شې) ماشه ، يو وزن ، چې د اتو رتو برابر وي او د دولسو ماشو نه يوه توله جوړېږي . د ټوپک تماچې ماشه . چې شيش پرې لګولے شي . زخه د ټوپک تماچې .

**مشے** :- (م + شے) (اس ، مذ ، ج . شي) مهے ، کب ، د ماشومانو په ژبه ، تار .

**مشيت** :- (م + شي + يت) (ع ، اس ، مذ) مرضي ، خوښه ، اراده ، غوښتنه ، د خدا ے پاک خوښه ، مرض .

واړه چارې په قسمت په مشيت شي

باد پـــــه لاس د منجم دے د رمال (خوشحال)

**ـــــ الهي** :- (ـــ (ت) + ا + لا + هي) .

**ـــــ ايزدي** :- (ـــ اي + ز + دي) (عف ، تر ، اس ، مذ) د خدا ے پاک خوښه ، د خدا ے پاک رضا غوارښه .

**مشير** :- (م + شي + ر) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) مشوره ورکوونکے ، صلاح ورکوونکے ، صلاح کار .

**مشيره** :- (م + شي + رَ) (اس ، مو ، ج ـــ رې / انې) د ,, مشير ،، مؤنث دے .

**مشيمه** :- (م + شي + مه) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ مې) د مور په ګېډه (رحم) کښې دننه هغه پرده چې ماشوم په کښې پروت وي . د سترګو پرده .

**مشين** :- (م + شي + ن) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ماشين ، هغه اله چې په بجلۍ يا بېټرۍ وغېره چلېږي او مختلف قسمه کارونه ترې اخستے شي . (اُر ـــ کل) او د لاس مقابله کښې کار زيات او صفا او يو شان کوي . د جامو د ګنډلو اله ، خود کار ټوپک .

**ـــــ خانه** :- (ـــ خا + نَ) (رنګ ، تر ، اس ، مو ، ج ـــ نې) هغه ځا ے چې په کښې ګڼ مشينونه کار کوي . يا ځا ے مرمت کولے شي . ورکشاپ . کارخانه

**ـــــ کول** :- مشين کول ، په مشين باندې کار کول ، عموماً د ګنډلو په مشين کار کول . يعني جامې ګنډل . مشين کول . په مشين وېښتهٔ يا سر خرئيل .

**ـــــ ګره** :- (ـــ ګ + ره) (انګ پ تر ، اس مو ، ج ـــ رې) په مشين کار کوونکې . په مشين جامې ګنډلو واله ښځه . درزنه .

**ـــ ګن** :- (ـــ ګن) (انګ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) توپه ، هغه ټوپک چې په ګوته راښکلو کارتوس په خپله يعني د مشين په ذريعه ورانديږ کوي او ډزې کوي .

**د ټائپ ـــ** :- (د ، ټا + ئپ ـــ) (انګ پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د ليکلو مشين ، ټائپ رائټر .

**د ګنډلو ـــ** :- (د ، ګن + د + لو ـــ) هغه مشين چې د ګنډلو کار پرې کولے شي . که هغه جامې وي او که نور څهٔ .

**مشينري** :- (م + شي + ن + ري) (انګ ، اس ، مو ، ج ـــ انې) د کارخانې مشينونه چې هر شان مشين په کښې وي . د يوې کارخانې مشينونه او نور مشيني ساز و سامان .

**مشيني** :- (م + شي + ني) (انګ ، پ تر ، صف) مشين واله ، مشين سره تعلق لرونکے ، مشين ته منسوب په مشين جوړ شوے .

**ـــــ دور** :- (ـــ دو + ر) (عپ ، تر ، اس ، مذ) موجوده دور ، چې اکثر کارونه د مشينونو په ذريعه کولے شي . تېز دور يا زمانه چې هر کار تېز او زر غوښتلے شي .

**ـــــ رفتار** :- (ـــ رف + تا + ر) (انګ ، پ تر ، اس ، مذ) تېز رفتار .

**ـــــ طاقت** :- (ـــ طا + قت) (انګ ، پ تر ، اس ، مذ) د مشين طاقت ، ډېر طاقت چې د انسان د لاس او وس نه بهر وي .

**ـــ کرهنه** :- (ـــ کر + هـ + نهَ) (انګ ، پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ نې) هغه کرونده کومه چې د مشينونو په ذريعه کولے شي . لکه ټرېکټر او نور داسې مشيني اوزار چې په کښې په کار راوستے شي .

**منبا** :- (م + نبا) (اس ، مو ، ج ـــ وې) هغه پچې کومې چې د ګډو بزو يا چېلو د لم وړې او وېښتو تر لاندې لښتې او چې شوې وي . جمع ئې ,,منباوې ،، ده

**منبـتل** :- (م + بن + تـل) نښتل ، لېوېدل ، چمېټـې کېدل ، سره ورپورې کېدل ، يو ځا ے کېدل .

**منبته** :- (م + بن + ته) (حمص) اوګورئ: منبتل .

**منبک** :- (مُبن + ک) (اس ، جم) اوګورئ: مُشک ، منبک ، مشک ، پښتو املائي صورت دے او مشک ئې فارسي .

**منبک وله** :- (مُبن + ک + و + له) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ لې) د ونې يو قسم دے . بېد مشک .

**منبکار** :- (مُبن + کا + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) اوګورئ ,, مشکار ،، .

**منبکی** :- (مُبن + کی) (اس ، مو) يو قسم خوشبويه واښهٔ دي .

**منبکي** :- (مُبن + کي) (پ تر صف) اوګورئ ,مُشکي ،، .

**ـــــ ګل** :- (ـــ ګُل) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ان) د تور رنګ ګل ، ګلِ مشکين ، تور ګل .

**منبکے** :- (مُبن + کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) يو قسم مرغۍ ده چې نور بدن خو ئې تور وي خو لکۍ ئې سپينه وي . اوګورئ ,, مُشکے ،، .

**منبکپير** :- (مُبن + ک + پي + ر) (اس ، جم) کافور ، کاپور د دارو مشهور توکے .

**منبکپيريځ** :- (مُبن + ک + پي + ري + ځ) کافورو واله ، کافورو ته منسوب ، کافوري .

**منبن ګيرک** :- (منبن + ګي + رک) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) ټپوس ، مشګيرک (ف : موش ګير) .

**منبل** :- (م + بنل) (مص) مږل (ف : ماليدن) ، ګرول ، سره لګول يا جنګول .

**منبلول** :- (م + بن + ل + ول) (مص) ننبلول ، لېوژل ، يو ځا ے کول . يو بل سره جوختول . يو بل سره په جنګ کول ، سره اچول . د يو د خاتمې نه سمدستي پس بل شروع کول .

**منبلے** :- (م + بن + لے) (اس ، مف) مږلے شوے ، سولېدلے ، زوړ .

**منبُنه** :- (م + بنه + نهَ) (حمص) مږنه ، منبودنه (ف : ماليدن) .

**منبـود** :- (م + بنو + د) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) منبنه ، مږنه ، محاورتاً کوښښ او زيار ، محنت مشقت .

که تهٔ کام غواړې خوشحاله

کام بـــــه مومې په منبو (خوشحال)

**منبـوده** :- (م + بنو + ده) (اسم ، مو ، ج ـــ ې) منبوکه ، د مارغهٔ ، چرګې يا چرګ خولهٔ ، هغه خولهٔ چې مخ نه وتې اوږده وي . د هډوکي وي او غاښونه په کښې نهٔ وي .

**منبوکه** :- (م + بنو + که) (اس ، مو ، ج ـــ کې) اوګورئ ,,منبوده ،، .

**ـــــ ځنډل** :- د کرکې اظهار کول ، د ناخوښۍ ، لکه متـل : کارغهٔ غُل هم

خوري ، منبوکه هم څنډي. يو کار کول خو په نا زړه نا زړه.

**منبوولې** :- (م + نبو + وو + لے)(صف) منبلے شوے ، زوړ هغه قروت چې يو ځل مړلے شوے وي.

**مصابيح** :- (م + ص + بي + ح)(ع ، اس ، ج) د ,, مصباح ،، جمع ده ـ ډيوې ، څراغونه ، چراغونه.

**مصاحب** :- (م + صا + حب)(ع ، اس ،مذ ،ج ـــ ان / ين) په محبت کښې اوسېدونکے ، همنشين ، ملگرے ،رفيق ، دوست سره ناست.

**مصاحبت** :- (م + صا + ح + ب + ت)(ع ، اس،مذ ،ج ـــ ونه) په صحبت کښې پاتې کېدۀ.هم مجلسي ، رفاقت ، ملگرتيا ، يو ځاے ناسته پاسته.

**ـــــ کول ، دچا** :- د چا په صحبت کښې پاتې کېدل.د چا په مجلس کښې پاتې کېدل.ملگرتيا کول ، چا سره ناسته پاسته کول ، يارانه کول.

**مصاحف** :- (م + صا + حِف)(ع،اس،مذ ، ج) د ,, مصحف ،، جمع ده ـ مصحفونه د قرآن مجيد نسخې.

**مصادر** :- (م + صا + د + ر)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ رې) تاوان اخستل ، تاوان ورکونه ، تاوان ـ ضبط کول.

**ـــــ کول** :- جرمانه کول ، تاوان (په چا) کښېښودل.ضبط کول.

**ـــــ کېدل** :- جرمانه کېدل ، څوک تاوان کېدل. ضبط کېدل.

**مصادف** :- (م + صا + دف)(ع ، اس ، مذ ،مو ـــ ه) مخامخ کېدونکے،مخ په مخ راتلونکے ، سره جنگېدونکے ، په يو وخت په يو ځاے واقع کېدونکے لکه : دا مېچ خو د اشورې د ورځې سره مصادف دے.

**ـــــ** :- مخ په مخ راتلل.يو ځاے واقع کېدل ، په يو وخت کښې پېښېدل.

**مصادمت** :- (م + صا + د + م + ت)(و ـــ مصادمه).

**مصادمه** :- (م + صا + د + مه)(ع،اس،مو، ج ـــ ې) يو بل ته صدمه رسول ، ضرر يا تکليف رسونه ، يو بل ته مخامخ ورتلل ، ډغره ، سره جنگېدنه ، تصادم.

**مصارف** :- (م + صا + رف)(ع ، اس ، ج) د ,, مصرف ،، جمع ده ، مصرفونه ، خرڅونه / خرچونه ، لگښتونه ، اخراجات.

**مصاف** :- (م + صا + ف)(ع ، اس ، ج) د ,, مصف ،، جمع ده ، د صفونو جوړولو يا ترلو ځايونه ، محاورتاً :د جنگ مېدان ، جنگړېز.

**ـــــ کول** :- جنگ کول ، جگړه کول.

چې مې هسې تربيت د ناخلف کړ
دا په دا چې دے له ما سره مصاف کا (خوشحال)

**مصافات** :- (م + صا + فا + ت)(ع،اس) دوستي ، اخلاص ، يکرنگي.

**مصافحه** :- (م + صا + ف + حه)(ع،اس، مو،ج ـــ حې) يو بل له لاس ورکول ، جوړ تازه کولو په وخت لاسونه ورکول.

**ـــــ کول** :- د جوړ تازه دپاره لاسونه ورکول يا ملاوؤل.

**مصالح** :- (م + صا + لح)(ع ، اس ، ج) د ,, مصلحت ،، جمع ده ښېگړې ، نېکۍ ، د فائدې معاملې ، لکه : د مملکت مصالح سامان ، مادي اشياء ـ لکه : د عمارت جوړولو مصالح.

**اجتماعي ـــــ** :- (اج + ت + ما + عي ـــ)(عف ، تر ، اس ، ج) هغه مصلحتونه يعني ښېگړې کومې چې د عامو خلقو د ژوند سره تعلق لري.

**دوخت ـــــ** :- (د ، وخ + ت ـــــ)(عپ تر،اس،ج) د وخت د ضرورت مطابق ، مصلحتونه.

**مصالحت** :- (م + صا + ل + حت)(ع ، اس ، مذ) د دوؤ يا زياتو بدي دارو سره خپلو کښې روغه يا صلح کول.

**مصاهرت** :- (م + صا + هـ + رت)(ع ، اس ، مذ) سخر کېدل ،زوم کېدل (په دواړو معنو کښې استعمالېږي).

**مصائب** :- (م + صائب)(ع ، اس ، ج) د ,, مصيبت ،، جمع ده ، مصيبتونه.

**مصب** :- (م + صب)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د اوبو وغېره د غورځېدلو ځاے ، د سيند وغېره د راوتلو ځاے.

**مصباح** :- (مص + با + ح)(ع ،اس ، مذ ،ج ـــ ونه / مصابيح) ډيوه ، څراغ ، د سور شرابو جام.

توئې کړه په هنگام د حادې ساقي په جام کښې
مې چې باد راپاڅي په زجاج کښې بنۀ مصباح (خوشحال)

**مصبر** :- (م + صب + بر)(اُر ، اس ، جم) يو قسم تراخۀ دارو دي ـ (اُر : ايلوا) صبر دارو هم ورته وئيلے شي. دا نوم د عربي نه دے خو په عربي املاء ليکلے هم شي او د کومو دارو چې دا نوم دے د هغه د همدغه څيز (صبر) دپاره استعمالېږي.

**مصحح** :- (مُ + صح + حح)(ع ، اس ، مف، مذ ،مو ـــ ه) صحيح شوے ،درست کړے شوے.اصلاح کړے شوے.

**مصحح** :- (م + صح + حح)(ع ، اس / صف ، مذ ، مو ـــ ه) صحيح کوونکے ، درستي کوونکے، اصلاح کوونکے.

**مصحف** :- (مص ، حف)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه / مصاحف) هغه څيز چې په کښې د کاغذونو پرزې راجمع کړے شوې وي.هغه کتاب چې په کښې رسالې او واړۀ واړۀ کتابونه (صحيفې) جمع کړے شوې وي. کتاب. قرآن کريم ، استعاره ، د معشوقې مخ.

**بغلي ـــ** :- (ب + غ + لي ـــ)(عف تر،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د وړوکي سائز قرآن مجيد ، چې پخوا به خلقو د څرمنې گوډې کښې غاړې ته اچولو.

**مصحف** :- (م + صح + حف)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې تصحيف ئې شوے وي.هغه چې د تورو نه ئې نقطې بدلې شوې وي.لکه : عيد نه عبد ، توشه نه بوسه وغېره.

**مصحوف** :- (مص + حو + ف)(ع ، اس ، صف، مذ، مو ـــ ه) ملگرے ، همراه ، سره.

**مصداق** :- (مص + دا + ق)(ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) هغه څيز چې د بل څيز تصديق کوي يا ترې کېږي.تصديق کوونکے ـ ثبوت،گواهي، شهادت.

**مصدر** :- (مص + در)(ع ، اس ، مذ ،ج ـــ ونه / مصادر) د راوتلو ځاے ، سرچشمه ، منبع جړه ـ د ستنبدلو ځاے،د بېرته راتلو ځاے ـ (گرامر کښې) هغه کلمه چې فعلونه اوصيغې ترې اشتقاقېږي په پښتو کښې ئې علامت ,, ل ،، دے ـ لکه : خوړل ، څښکل ، ليکل او نور.

**لازم ـــــ** :- (لا + زم ـــــ)(عپ ، تر، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه مصدر چې فعل ئې تش فاعل غواړي. يعني يواځې فاعل سره خپل مطلب پوره کړي ـ لکه : زۀ ليکم يا تۀ ليکې يا هغه ليکي او نور.

**متعدي ـــ** :- (م + ت + عد+دي)(عپ ، تر،اس، مذ، ج ـــ ونه) هغه مصدر چې فعلونه ئې د فاعل نه علاوه مفعول هم غواړي . لکه : سليم په سائيکل سوور دے يا هغه په خر بار اووړي.

**مصدري** :- (مص + د + ري)(عف ، تر ، صف) هغه چې مصدر سره تعلق لري يا مصدر ته منسوب وي.مصدر واله.

**مصدق** :- (م + صد + دق)(ع ، اس ، مف ، مذ،مو ـــ ه) تصديق شوے ، رېښتيا گڼلے شوے.منلے شوے.

**مصدق** :- (م + صد + دق)(ع ،اس / صف ، مذ ، مو ـــ ه) تصديق کوونکے ، يو څۀ ته رېښتيا ويونکے.د شواهدو په رڼا کښې د يو څۀ رېښتيايي گواهي ورکوونکے.

**مصدقه** :- (م + صد + دقه) د ,, مصدق ،، مؤنث دے.

**ـــــ خبر** :- (ـــــ خ + بر)(عف ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه)هغه خبر چې

تصدیق ئې شوے وي.رښتیا خبر ، رښتیانے خبر.

**ـــــ سند** :- (ــــ س + ند )(عف ، تر، اس ، مذ ، جـــونه) هغه سند چې د کوم اعتباري سړي د طرفه پرې تصدیق شوے وي.

**مصدع** :- (مُ + صد + دع )(ع ، اص / صف ، مذ ،مو ـــ ه ) تکلیف ورکوونکے ، د سر درد پیدا کوونکے.

**مصدور** :- (مص + دو + ر )(ع،اس ، مف ، مذ ،مو ــــ ه) صادر شوے ، را اېشتلے شوے.را وېستلے شوے.رابهر کړے شوے.

**مصر** :- (م + صر )(اس ، مذ ، ج ــــــ ونه) ښهر، د عربی ,,مصر،، دے . بلده یا نګر ، (مع ) د افریقې قطب نمر ختاته یو لوے ملک چې انګریزی کښې ورته Eqypt وئیلے شي.

**مصر** :- (مُ + صر )(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) اصرار کوونکے ، په یوه خبره نښتونکے ، ضد کوونکے ، په یوه خبره یا کار کلک ودرېدونکے ، په یوه خبره ټینګېدونکے ، یوې خبرې نه نۀ اوړېدونکے .

**مصراع** :- (مص + را + ع )(و ــــ مصرع ) دوه مصرعې ، د مصرعه تثنیه ده.

نۀ ئې وزن نۀ ئې تقطیع نۀ ئې عروض وو
دوه مصراع د حیف بحـــــــر دوه طـــال خوشحال)

**مصرع** :- (مص + رع)(ع ، اس ، مو ، جـــــ ې ) د دروازې یوه تنبه ، د شعر د دوو کرښو نه یوه کرښه .د پښتو د عوامي شاعرۍ یو زوړ او مقبول صنف،دا اصلاً دوه برخې لرې چې اولنۍ برخه ئې لنډه او دوېمه اوږده وي ځکه لنډۍ هم ورته وائي ، ټپه یوه مصرع ئې ۹ سېلابه وي بله ئې ۱۳ سېلابه وي.

**ــــــ ثاني** :- (ــــ (ئي) ثا + ني )(عف ، تر،اس،مو ) د شعر اخیرنۍ مصرعه ، د شعر دوېمه مصرعه.

**ــــ طرح** :- (ــــ (ع) + ط + رح )(عف ، تر ، اس ، مو ) هغه مصرع چې په مشاعرې کښې د وئیلے کېدلو غزلو د بحر ، قافیه او ردیف د ښودلو دپاره منتخبه کړے شي.

**ـــ کول / وئیل** :- ټپه په سُر سره په اوچت اواز وئیل.مصرع جوړول ، ټپه سازول.

**مصرف** :- (م + ص + رف )(ع ، اس ، مذ ،جــــونه / مصارف) د صرف کولو ځاے ، د خرڅ یا د لګولو ځاے ، د یو خاص رقم د لبنګت خاص مد . لکه د زکواة د رقم مصرف مسکینان غریبانان او کونډې یتیمان دي . غرضي ، مقصد ، کار .

**خپل ــــ** :- د خرڅ کېدلو خپل ځاے.

**مصرف** :- (مص + رف )(ع ، اس ، مذ ، جــ ان / ین ) صرف کوونکے ، خرڅ کوونکے ، مال دولت لګولو واله . طاقت ، توانائي یا دولت یا اثاثه چې په هر شکل کښې وي.لګوونکے یا خرڅ کوونکے .

**بې ـــــ** :- (بې ــــ ) بې فائدې ، بې کاره ، هغه څۀ چې په څۀ ښېګړه نۀ راځي.

**مصروف** :- (مص + رو + ف )(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه ) صرف کړے شوے ، ستون کړے شوے.څۀ کار کښې اخته ، لګیا ، بوخت، مشغول .نااوزګاره، نافارغه.

**ــــ کول** :- په کار کښې لګیا کول یا مشغولول په کار لګول.

**ــــ کېدل** :- په کار لګیا کېدل ، په کار کښې مشغولېدل.په کار کښې بوختېدل یا اخته کېدل.

**مصروفول** :- (مص + رو + ف + ؤل )(مص )(و ــــ مصروف کول ).

**مصروفیت** :- (مص ، رو + في + یت )(ع ، اس ، مذ ، جـــونه ) مشغولتیا ، نااوزګارتیا .

**مصروفېدل** :- (مص رو + فې + دل )(مص )(و ـــ مصروف کېدل ).

**مصري** :- (مص +ري )(اس ، جم ) خواږۀ یا نبات ، پخوا به د سپینو قندو یا چینو نه لوئې لوئې تختې جوړولې شوې .دغو تختو ته به مصري وئیل شول. د مصر نومې ښار یا علاقې سره د مېشت تعلق لرونکے ، د مصر ، د مصر اسم صفت ، لکه یو څیز چې مصر کښې د جوړېدلو په سوب ورته مصري وئیلے شي.لکه مصري توره.یا مصرے کاغذ هم ډېر مشهور دے.سور بخښن کاغذ وو چې دیني کتابونه پرې چاپېدل.

سپینې لېچې د مصری حورې تېرې دي
چــــې خونونه ئې په غاړه سل هزار دي (خوشحال)

**مصري زئ** :- (مص + ري + زئ )(اس ، مع ) د مشوانیو یوه قبیله ده.

**مصري زئ** :- (ددغه )(اس ، مع ) د اعشے زئیو څانګه ده . (اعشے زئ د اخکزي) ابدال ترین دي.

**مصطفوي** :- (مص+ طف + وي )(عپ، تر، صف ) مصطفیٰ ص سره تعلق لرونکے. مصطفیٰ ص اسم ته منسوب دے.

**مصطفیٰ ص** :- (م + ص + ط + فا )(ع ، صف ) غوره کړے شوے ، جوړ کړے شوے ، منتخب شوے.د رسول الله صلعم لقب دے.

د مؤمـــن زړۀ نزول عــــرش نزول دي
که نظر دې په حدیث د مصطفیٰ ص وي

**مصطکي** :- (م + ص + ط + کي ).

**مصطکي** :- (ـــــــ ګي )(اس ، مو ) یو قسم ګوند (چېر) دے .چې د پستې د ونې نه حاصلېږي .په دارو کښې استعمالېږي .په دې کښې رومي مصطکي ډېره اعلی وي چې پخوا به د روم نه راتلل.

**مصطلح** :- (مص + ط + لح )(ع،اس،مف ، مذ ، مو ـــ ه ) اصطلاح کړے شوے ، اصطلاح ګرځولے شوے ، د هر علم خاص اصطلاح وي.

**مصطلحات** :- (مص + ط + ل + حا + ت )(اس ، مذ ، ج ) اصطلاح ګانې ، محاورې ، د مصطلحې جمع ده.

**مصغر** :- (م + صغ + غر )(ع ، اس، مف،مذ ، مو ــــــ ه ) وړوکے کړے شوے څیز یا نوم.

**ـــــ اسم** :- (ــــ ا + س + م )(عف ، تر، اس ، مذ ، جــونه) هغه اسم (نوم) چې د اصل نوم نه په لنډ ډول جوړ شوے وي. لکه : ډول نه ډولکے.

**مصغرات** :- (م + صغ + غ + رات ) د ,, مصغر،، (اسم ) جمع ده.

**مصفٰی** :- (م + صف + فی )(صف ) صفا شوے،د ګډون یا ملاوټ نه پاک صفا ، پاک ، سُتره.

**ـــ کول** :- خالص کول،صفا کول ،ګډون وغېر ترې لرې کول.

**مصفّي** :- (مُ + صف + فی )(ع ، صف ) صفا کوونکے ، سره کوونکے ، لکه : صابون چې سخا جامې صفا کوي یا صافي چې مصفي خون ده.

**مصقل** :- (مص + قل )(ع ، اس ، مذ ، جـــــونه ) هغه اله چې زر ګران یا د اوسپنې وغېره رڼوونکي ئې استعمالوي.رڼوونکې اله.

**مصقله** :- (مص + ق + لَ )(ع،اس، م، جـــــ لې )(و ـــ مصقل ).

**مصقلي** :- (مص + ق + لي )(ع،اس،مو) صفا کېدنه،صېقل کېدنه، رڼېدنه.

د زړۀ زنګ په بل صېقل نۀ لرې کېږي
پـــــــه دوستۍ ئې د علي ده مصقلي (خوشحال)

**مصلی** :- (مُ + صل + لے )(اس ، مو ، جــــ ګانې ) مصله ، موصله،د مېزرې نه جوړ شوے خاص پوزے یا درۍ وغېره چې نمونځ پرې کولے شي.د نمونځ کولو ځاے ، عید ګاه ، لوے جماعت ، جومات.

**مصلح** :- (مـص + لح )(ع،اس،مذ ، جــــ ان / ین ) اصلاح کوونکے ، درستوونکے ، د نېکۍ یا نېغې لارې ته راوستونکے.

**مصلحت** :- (مص + ل + حت) (ع ، اس ، مو ، ج ـ ونه / مصالح) نېکه صلاح ، ښهٔ مشوره ، رائې اخستنه یا ورکونه ـ ښېګړه ، حکمت ، پالیسي ، مرضي لکه : هغه ساعت هغه مصلحت.

**ـــــ اندېشانه** :- (ـــ ان + دې + شا + نه) (عف، تر، تف) د مصلحت د فکر مطابق، د مصلحت په حقله د سوچ فکر په طور.

**ـــــ اندېشي** :- (ـــ ان + دې + شي) (عف ، تر، اس، مو) د مصلحت دپاره غور و فکر کونه. دا غور و فکر کول چې مصلحت په کوم عمل کښې دے.

**صلاح ـــــ** :- (ص + لا (ح) ـــــ) (ع تر ، اس ، مذ) صلاح او مشوره ، مشوره ، د یو بل رائې اخستل.

**مصلحتاً** :- (مص + ل + حتاً) (ع ، تف) د مصلحت په طور د ښېګړې په هیله ، په ښهٔ نیت.

**مصلحتي** :- (مص + ل + ح + تي) (عف ، صف) مصلحت سره تعلق لرونکے ، مصلحت ته منسوب ، مصحلت واله هغه خوک چې صلاح مشوره ورسره کولے شي. صلاح کار ، ملګرے.

**مصلوب** :- (مص + لو + ب) (ع، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) په صلیب شوے ، په صلیب خېژولے شوے. پانسي کړے شوے یا تېزندۍ کړے شوے.

**مصلّي** :- (م + صل+لی) (ع،اس،مذ،ج ـ لې) موصله ، جانماز.

**ـــــ زړول** :- ډېر زیات مونځونه کول. محاورتاً : ډېر زیات عبادت کول. خو دغه محاوره همېشه د طنز ټوکنې په وخت استعمالولے شي . یا د چا د دغسې مکر او دعوې د نفي په وخت.

**ـــــ لنګ کول** :- ډېر زیات تلاش او زیار کول ، ډېر لټون کول.

هېڅ اثـر دې پـه سـنګین خـاطر ؤنـهٔ شـهٔ
کـه هرڅـو مـې مصـلې دریسـې لنـګ کـړې

**مصمم** :- (م + صم + مم) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) پـوخ ، کلـک ، مضبوط (لکه پوخ عهد ، نیت او نور).

**مصممه** :- (م + صم + م + مه) (عپ ، تر ، اس ، مو ، ج ـــ ې) د ,, مصمم ،، مؤنث دے . پښتو محاوره کښې مدام همدغه صورت (مصممه) استعمالېږي او ورپسې ,, اراده ،، لګي. مصممه اراده. مضبوطه اراده.

**مصنف** :- (م + صن + نف) (ع ، اس ، مف ، مذ ، ج ـــ ونه) تصنیف کړے شوے ، مرتب کړے شوے . د قسم په لحاظ ترتیب کړے شوے (فني ، علمي ، ادبي مواد).

**مصنف** :- (مُ + صن + نف) (ع ، اس ، فا ،مذ ، ج ـــ ان / ین) تصنیف کوونکے ، څۀ علمي ، فني، ادبي مواد صنف وار یا قسم وار مرتب کوونکے . په عامو معنو کښې کتاب لیکونکے.

**مصنفات** :- (م + صن + ن + فا + ت) (ع ، اس ، ج) د چا مصنف ټول لیکلي شوي کتابونه ، ټول تصنیفات.

**مصنفه** :- (م + صن + ن + فه) (اس، مو، ج ـــ ات) د ,,مصنف ،، مؤنث دے.

**مصنوع** :- (مص + نو + ع) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) صنع شوے ، جوړ شوے ، ساخته (په لاسونو یا په مشینونو).

**مصنوعات** :- (مص + نو + عا + ت) په لاسونو یا کارخانو کښې جوړ شوي څیزونه

**مصنوعه** :- (مص + نو + عه) د ,,مصنوع ،، مؤنث دے . مصنوعه ، جوړ شوے ، د ملک یا کارخانې نوم. څۀ ته انګرېزي کښې Made in وئیلے شي.

**مصنوعي** :- (مص + نو + عي) (عف ، تر ، صف) جوړ کړے شوے. هغه څیز چې د انسان جوړ کړے شوے وي. قدرتي نۀ وي. لکه مصنوعي ربښم ، غیر اصلي ، نقلي. لکه : مصنوعي خندا یا اعضاء.

**مصوت** :- (م + صو + وت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (ګرامر) د علت حروف ، واولونه ، عموماً د مؤنث په شکل کښې ,,مصوته،، استعمالېږي.

**مصوته** :- (م + صو + و + تَ) (ع ، اس ، مو، ج ـــ تې) (ګرامر) د علت تورے ، واؤل.

**مصور** :- (مص + و + ر) (اس ، مذ) (و ـــ کاهرېزه).

**مصور** :-(م + صو + ور) (ع،اس،مف،مذ،مو ـ ه) تصویر واله، تصویرونه لرونکے، هغه کتاب وغېره چې په کښې تصویرونه (هم) شامل کړے شوي وي.

**مصور** :- (م + صو + ور) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) تصویر اخستونکے ، تصویر جوړوونکے، تصویرونه جوړوونکے، صورت ګر، نقاش، نقش ګر، ارټسټ. د خدائے پاک یو صفتي نوم دے.

**مصوره** :- (م + صو + و + ره) (اس ، مو، ج ـــ رې / انې) د ,, مصور ،، مؤنث دے.

**مصوري** :- (م + صو + و + ري) (عف ، تر ،اس ،مو) تصویرونه جوړونه ، تصویر کشي ، ارټ ، نقاشي ،صورت ګري.

**مصون** :- (مص + و + ن) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) محفوظ ، بچ ، په حفاظت کښې. محاورتاً بې غمه ، ازاد ، خلاص، دمه. لکه : وکیلان د ګرفتارۍ نه مصون دي.

**ـــــ کېدل** :- محفوظ کېدل ، بچ کېدل.

**مصونیت** :- (مص + ؤ + ني + یت) (ع ، اس ، مذ) محفوظ کېدنه ، په حفاظت کښې راتلنه.

**مصیبت** :- (م + صي + بت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) تکلیف ، رنځ ، تکلیف یا دوک ورکوونکے څیز یا پېښه ، تکلیف ورکوونکے کس . تنګوونکے کس.

**ـــ وهلے** :- (د ـــ و + ه + لے) (عپ ، تر ، صف ،اس ، ج ـــ لي) هغه چې مصیبت یا تکلیف پرې تېر شوے وي.

**مضار** :- (م + ضا + ر) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د ,, مضرت ،، جمع ده . مضرتونه ، تکلیفونه ، ضرورنه ، نقصانونه.

**مضاربت** :- (م + ضا + ر + بت) (ع ، اس ، مذ، ج ـــ ونه) داسې تجارت دپاره چاته مال دولت ورکول چې په ګټه او تاوان کښې درسره شریک وي . په تجارت چاسره دخپل رقم سرمائې په حساب د تجارت د ګټې او تاوان په بنیاد شراکت. سره وهل ټکول ، جنګ و جدل.

**مضاربه** :- (م + ضا + ر + به) (و ـــ مضاربت).

**مضارع** :- (م + ضا + رع) (ع ، اس) یو شان ، مشابه، په شان (ګرامر) هغه فعل چې په کښې د حال او د مستقبل دواړو معنې موجودې وي . (عروض) د یو بحر نوم دے چې وزن ئې څلورځله ,, مفاعیل فاعلات ،، دے.

**مضاعف** :- (م + ضا + عف) (ع ، اس ، عدد) دوه ګونه ، دوچند (ګرامر) هغه کلمه چې په اخر کښې ئې د یو جنس دوه توري راشي.

**مضاف** :- (م + ضا + ف) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) سره نښتے، سره پېوند ، پېوند کړے شوے . (ګرامر) هغه اسم چې بل کوم اسم سره تعلق لري. یا ورسره ولګولے شي. لکه : د ګلاب ګل په دې کښې ,, ګلاب ،، مضاف دے . چې تعلق ئې د ګل سره لګېدلے دے او ,,د ،، په کښې د اضافت تورے دے.

**ـــ الیه** :- (ـــ اي + لے + ه) (ع ، تر ، اس ، مذ) (ګرامر) هغه اسم چې د بل کوم اسم ورسره تعلق وي . لکه : د ګلاب ګل ، په دې کښې ګل مضاف الیه دے او ,, ګلاب ،، ئې مضاف دے . او ,,د ،، په کښې د اضافت تورے دے.

**مضافات** :- (م+ضا+فا+ت)(اس، ج)د ,,مضاف،، جمع ده .يو ځيز سره متعلق ځيزونه .د خوا و شا علاقې د كوم خاص ځائي يا د ښهر نه چارچاپېره علاقې يا كلي بانډې وغېره.

**مضامين** :- (م+ضا+مي+ن)(ع، اس، ج)د ,,مضمون،، جمع ده . مضمونونه

**مضائقه**:-(م+ضا+ئي+قه)(ع،اس،مو،ج ـــ قې) تنگي،ضيق،دشواري، گرانوالې، حرج، ويره، پروا، اعتراض، جرحه.

**مضبوط** :- (مض، بو+ط)(ع، اس، مف، مذ، مو ـــ ه) ضبط كړے شوے، په قابو كښې، كلك، ټينګ، محكم، طاقتور، د زور واله.

**ـــ والې** : (ـــ وا+لې)(عپ،تر،اس، مذ) كلكوالې، ټينګوالې، محكمتيا، طاقت وري، قوت ناكي، زور لرنه.

**مضبوطول**:- (مض+بو+ط+ؤ+ل)(مص) كلكول، ټينګول، محكم كول، طاقت وركول.

**زړۀ ـــ** :- (ز+ړ ـــ) زړۀ كلكول، همت پيدا كول، زړۀ ټينګول، جرات پيدا كول، حوصله كول يا حوصلې نه كار اخستل.

**مضبوطېدل** :- (م ض+بو+طې+دل)(مص) كلكېدل، محكم كېدل، ټينګېدل

**مضحك** :- (مض+حك)(ع،صف،مذ،مو ـــ ه) خنده وونكے، هغه خبره وغېره چې ليدونكي يا اورېدونكي ته پرې خندا ورشي .د خندا وړ يا جوګه.

**مضحكه** :- (م+ض+ح+كه)(ع،اس، مو، ج ـــ كې/ات) د خندا خبره وغېره، ټوقه ټقاله، مذاق، وشته.هغه كس چې خلق ورپورې خاندي.د كم عقل تيا په سوب.

**ـــ خېز** :- (ـــ خې+ز)(عف، تر، صف، مذ، مو ـــ ه) د چا هغه خبره يا ځيز وغېره چې نورو له پرې خندا ورځي. د كم عقلۍ خبره يا كار.

**مضر** :- (م+ضر)(ع، صف، مذ،مو ـــ ه) ضرر وركوونكے، نقصاني، تكليف رسوونكے.

**ـــ مكروبونه** :- (ـــ مك+رو+بو+نَ)(انګ تر، اس، ج) هغه جراثيم چې بني ادم ته نقصان رسوي.

**مضراب** :- (مض+را+ب)(ع،اس، مذ، ج ـــ ونه) شهباز، شاباز، د رباب د غږولو ډكے، زخمه.

**مضرات** :- (م+ضر+را+ت)(ع، اس، ج) ضرر رسوونكي (ځيزونه).

**مضرت** :- (م+ضر+رت)(ع، اس، مذ، ج ـــ ونه) ضرر، نقصان، تكليف.

**ـــ رسان** :- (ـــ ر+سا+ن)(عف، تر، صف، مذ، ج ـــ ه) نقصان رسوونكے، ضرر رسوونكے.

**ـــ رسول** :- ضرر رسول، نقصان يا تكليف رسول.

**مضروب** :- (مض+رو+ب)(ع، اس، مف، مذ، مو ـــ ه) ضرب خوړلے، ګذار خوړلے.وهلے شوے.(رياضي) هغه عدد كوم له چې بل عدد سره ضرب وركړے شي.

**ـــ فيه** :- (ـــ في+ه)(ع، تر،اس، عدد) رياضۍ كښې هغه عدد ته وائي چې ورسره بل عدد له ضرب وركولے شي.

**مضطر** :- (مض+طر)(ع، صف، مذ،مو ـــ ه) ناقلاره،بېتابه،پرېشانه.

**مضطرب** :- (مض+ط+رب)(ع، ص،مذ،مو ـــ ه) په اضطراب كښې، پرېشانه، بې ارامه، ناقلاره، په تكليف كښې، په سخته كښې.

**ـــ الحال** :- (ـــ (ال)+حا+ل)(ع، تر، صف، مذ، مو ـــ ه) پرېشان حاله، د ناقلارۍ په حال كښې. بد حاله.

**مضمحل** :- (مض+م+حل)(ع، صف، مذ، مو ـــ ه) په اضحلال كښې، مخ په كمي، راغونډېدونكے، كمزورے، ناتوانه، مانده، ډنګر، ټيپ.دلګير، غمژن.

**ـــ كول** :- كمزورے كول.مانده كول، ډنګر كول. خفه كول، پرېشانه كول.

**ـــ كېدل** :- كمزورے كېدل، ناتوانه كېدل،مانده كېدل. راغونډېدل - كمېدل، پرېشانه كېدل، خفه كېدل.

**مضمر** :- (مض+مر)(ع، صف، مذ، مو ـــ ه) هغه چې په ضمير كښې وي .پټ سينه كښې / زړۀ كښې.

**مضموم** :- (مض+مو+م)(ع،اس، مف، مذ، مو ـــ ه) ضم واله، هغه تورے چې د پېښ علامت لري.پېښ واله (تورے).

**مضمون** :- (مض+مو+ن)(ع، اس،مذ،ج ـــ ونه/مضامين) په ضمن كښې اخستے، په مېنځ كښې اچولے شوے. په نظر كښې نيولے شوے.مطلب، معنې، بيان، خبره، جواب مضمون، ارټيكل، خبره، ګفتګو، كلام، د درس يو ځانګه.

يا به هسې پوچ ګويي كاندې اغازه
چې مضمون ئې نۀ مردار وي نۀ حلال (رحمان بابا)

**ـــ افريني** :- (ـــ اف+ري+ني)(عف، تر،اس، مو) په كلام كښې نوې نوې معنې راپيدا كوُنه.په وېنا كښې نوے نوے بحث چېړنه.

**ـــ اخيستل** :- په درس كښې د تدريس په مختلفو موضوعاتو كښې ځان له غوره كول.

**ـــ زده كول** :- مطلب معلومول.مدعامعلومول، اصل مقصد معلومول.

زمـــا زړۀ طومار د مهر و وفا دے
ځيرا وۀ شي چا ئې زده نۀ كړ مضمون (خوشحال)

**ـــ نګاري** :- (ـــ ن+ګا+ري)(عف،تر،اس،مو)جواب مضمون ليكنه، مقاله ليكنه.

**ـــ نويس** :- (ـــ ن+وي+س)(عف،تر،اس،مف، مذ، ج ـــ ان) هغه سړے چې جواب مضمون يا مقاله وغېره ليكي .(د مضمون ليكونكے)( مضمون نګار عموماً د اعلىٰ درجې د ادبي مضمونونو ليكونكي د پاره استعمالېږي).

**ـــ نويسي** :- (ـــ ن+وي+سي)(عف، تر،اس،مو) مضمون يا مقاله وغېره ليكنه.د مضمون وغېره د ليكنې، فن.

**ـــ ما معنې** :- (ـــ ما+معنا)(ع، جمله) ځۀ چې تېر شول هغه تېر شول. تېر په هېر وګڼه.

تېره چاره چې يادوي فائده ئې كومه
و دانـــا تـــه مضـــا واړه مضـــا ده (خوشحال)

**مطابع** :- (م+طا+بع)(ع، اس، ج)د ,,مطبعه،، جمع ده.مطبعې، چاپه خانې، پرېسونه.

**مطابق** :- (م+طا+بق)(ع، صف، مذ، مو ـــ ه) سره سم، يو شان، برابر، موافق.

**ـــ كول** :- سره سمول، سره برابرول، يو شان كول.

ـــ كېدل :- يو شان كېدل، سره سمېدل، سره سمون خوړل، برابرېدل، موافق كېدل.

**مطابقت** :- (م+طا+ب+قت)(ع،اس،مو) يو شان والې،سره سمن، موافقت، يكسان والې.

**ـــ لرل** :- يو شان والې، سمون لرل، برابرے لرل، موافقت لرل.

**نقل ـــ دا صل** :- (ن+قل ـــ د.ا+صل)(عپ، تر، مذ) د يو ليك داسې

نقل چې هغه بېخي د اصل د ليک په شان وي.صحيح نقل، هوبهو نقل.

**مطابقه** :- (م+ طا+ب+ قَ) د ,,مطابق ،، مؤنث.

**مطاع** :- (م+ طا+ ع) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) هغه چې اطاعت ئې شوے وي يا کېږي کولے شي.سردار ، مخدوم.

**مطاف** :- (م+ طا+ ف) (ع ، اس ، ظ) د طواف کولو ځاے ، چاپېره ګرځېدلو ځاے . حرم شريف يعني بيت الله مبارک کښې د کوټې مبارکې نه چاپېره د چکرو يا طواف کولو مېدان ته مطاف وئيلے شي.

**مطالب** :- (م+ طا+ لب) (ع،اس، ج) د ,,مطلب ،، جمع ده . غرض ، مقصدونه ، معانې ، مرادونه.

**مطالبات** :- (م+ طا+ ل+ با+ ت) (ع،اس،مو، ج) د ,,مطالبه ،، جمع ده . مطالبې.

**مطالبه** :- (م+ طا+ ل+ به) (ع،اس، مو، ج ــــ بې / ات) طلب کونه ، غوښتنه ، دعویٰ ، حق غوښتل.

**مطالع** :- (م+ طا+ لع) (ع ، اس ، ج) د مطلع جمع ده . د نمر ستورو وغېره د راختلو ځايونه.

**مطالعات** :- (م+ طا+ ل+ عا+ ت) (ع ،اس،ج) د ,,مطالعه ،، جمع ده ، مطالعې لوستنې.څېړنې ، ځارنې.

**مطالعه** :- (م+ طا+ ل+ ع) (ع،اس،مو، ج ــــ عې / ات) غور، توجه ، يو څيز ته د علم او واقفيت حاصلولو دپاره په توجه سره کتل .د کتاب خاموشه لوستنه، څېړنه ، ځارنه.

**ــــ فطرت** :- (ــــ فط+ رت) (عف تر،اس، مو) د قدرتي مناظرو يا د قدرت د کارونو وغېره په غور سره کتنه. په غور سره د کائناتو تماشه.

**مطالعې** :- (م+ طا+ ل+ عې) د ,,مطالعه ،، جمع ده .د ,,مطالعه ،، بدل شکل چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.

**مطاوع** :- (م+ طا+ وع) (ع ،اس ، صف ، مو ــــ ه) اطاعت کوونکے ، فرمان برداره ، مطيع.

**مطاوعت** :- (م+ طا+ و+ عت) (ع،اس،مذ) اطاعت ،حکم منڼه، فرمانبرداې.

**مطبخ** :- (مط+ بخ) (ع ،اس،مذ ، ج ــــ ونه / مطابخ) د اخلي پخلي ځاے ، باورچي خانه.جارګے ،نغرے ، انغرے.

**مطبع** :- (مط+ بع) (ع ،اس ، مو ، ج ــــ عې / مطابع) د طبع کولو ځاے ، چاپه خانه ، پرنټنګ پرېس.

**مطبوعات** :- (مط+ بو+ عا+ ت) (ع ، اس ،ج) د ,,مطبوع ،، جمع ده.چاپ شوي کتابونه،اخبارونه، رسالې وغېره.

**مطــرب** :- (مـط+ رب) (ع،اس، مـذ ،ج ـــ ان) طـرب راوسـتونکے، خوشحالوونکے ، ډم ، ساز غږوونکے ، سازي / سازيان.

**مطعون** :- (م+ ط+ عو+ ن) (ع ،اس ،مف،مذ،مو ــــ ه) طعن ورکړے شوے.هغه چې طعنه يا پېغور ورکړے شوے وي.بدنام کړے شوے. رټلے شوے، شرمنده کړے شوے ، ملامت کړے شوے.

**مطلا** :- (م+ طل+ لا) (ع ، صف) هغه چې د طلا (سرو زرو) کار پرې شوے وي ، زرين.

**مطلب** :- (مط+ لب) (ع ،اس ،مذ ، ج ــــ ونه / مطالب) غرض ،مدعا، منشاء ، مقصد ، اشاره ، مشاراليه لکه : مطلب ئې ته ؤ وې .(اصلاً : د مطلب ځاے).

زوے، ورور ، يار همګي د خپل مطلب دي
تــــ ـه ئې هېڅ نۀ ئې پکار واوره لـه مانه (سعيد خټک)

**ــــ ترسره کول** :- غرض پوره کول ، خپله مدعا ترسره کول.خپل حاجت يا ضرورت پوره کول.

**ــــ تر سره کېدل** :- مطلب پوره کېدل،غرض پوره کېدل،مقصود حاصلېدل . حاجت يا ضرورت پوره کېدل.

**ــــ کول** :- خپل غرض پوره کول ، خپله مدعا ترسره کول.خپل حاجت يا ضرورت ادا کول.

**ــــ کېدل** :- غرض پوره کېدل،مدعا پوره کېدل ،حاجت پوره کېدل.

**ــــ لرل ، چا سره** :- غرض لرل ، کار لرل ، حاجت لرل.

**په ــــ رسېدل** :- د وېنا په مقصد يا غرض پوهېدل.د چا په مدعا پوهېدل.

**د ــــ خبره/خبرې** :- (د ــ خ+ب+ر/ خ+ب+رې) د اصل غرضي خبره يا خبرې (د ګډو وډو يا د اوږدو خبرو په مقابله کښې مقصدي خبره.

**د ــــ خبره اورېدل** :- د کوڼ سړي په حقله وئيلے شي چې هسې ئې ځان کوڼ کړے دے.د خپل مطلب په خبره بنۀ پوهېږي يا د خپل مطلب خبره اوري.

**د ــــ خبره کول** :- صفا خبره کول،اصلي خبره يا مقصدي خبره کول.

**مطلبي** :- (مط+ ل+ بي) (عپ، تر، صف) غرضي ، خود غرضه ، خپل مطلب تر مخې نيوونکے ، مطلب اشنا .

**ــــ په خټه اور لګوي** :- متل دے : خپل مطلب پوره په لړ کښې تلوار او توندي کوونکے .بې صبري کولو واله.

**ــــ خبره** :- (ــــ خ+ ب+ ره) اصلي،بنيادي يا مقصدي خبره .لنډه خبره .

**مطلع** :- (مط+ لع) (ع ، اس ، ظ) د طلوع کېدلو ځاے ، د نمر ستورو وغېره د راختلو ځاے . د غزل يا د قيصدې اولني شعر چې دواړه مصرعې ئې يوشان قافيه لري.

د غزل نه ئې مطلع نۀ ئې مقطع وه
نه صفت نۀ ئې تشبيه نۀ ئې مثال (خوشحال)

**ــــ ثاني** :- (ــــ ئې) ثا+ ني) (عف، تر، اس ، مذ) دوېمه مطلع ، د غزل يا د قصيدې هغه شعر چې مطلعې پسې راوستے شي.ددې شعر هم دواړه مصرعې يو شان قافيې لري.

**مطلــع** :- (مـط+ ط+ لـع) (ع،اس،مف،مـذ ،مو ــــ ه) اطـلاع ورکـړے شوې،خبر کړے شوے،خبرداره ، پوه،واقف.

**ــــ کول** :- اطلاع ورکول ، خبر ورکول.

**ــــ کېدل** :- اطلاع وررسېدل ، خبرېدل.

**مطلع** :- (مط+ ط+ لع) (ع ،اس ، فا ، مذ ،مو ــــ ه) اطلاع ورکوونکے ، خبر ورکوونکے.

**مطلق** :- (مط+ لق) (ع ،صف، مذ ،مو ــــ ه) صرف او صرف ، او بس ، بالکل ، بېخي ، قطعي.

غم د رزق مه کړه مطلق رازق باري دے
کلـــــک امېـــد لره په خداے متوکله (حافظ)

**ــــ العنان** :- (ــــ (ال) ع+ نا+ ن) (ع ، تر، صف ، مذ ، مو ــــ ه) هغه عنان دار يا واک دار چې د هېڅ قاعدې او قانون پابند ځان نۀ ګڼي .د خپلې خوښې خاوند او د خپلې مخې مېړۀ.

**قــادر ــــ** :- (قا+ د+ ر ــــ) (ع تر ، اس ، مع) د خداے پاک صفتي نوم دے. مطلب صرف او صرف الله د طاقت څښتن دے.

**مطلق** :- (مط+ ل+ ق) (ع ، تف) قطعي طور سره .بالکلاً ، په بېخي توګه ، صرف او بس.

**مطلقه** :- (مط+ ل+ قه) د ,,مطلق ،، مؤنث دے.

**مطلقه** :- (م+ طل+ قه) (ع ،اس، مف ، مو، ج ــــ قې) هغه ښځه چې طلاق کړے شوې وي.طلاقه ، پرېښودلې شوې. پښتو محاوره کښې

داسې نسخه د ښکنځلو په وخت په ,, موتره ،، یادولے شي۔

**مطلوب** :- (مط + لو + ب) (ع،اس، مف، مذ، مو ـــ ه) طلب کړے شوے ، غوښتلے شوے ، مراد ، غرض۔

**مطلوبه** :- (مط + لو + به) (ع ،اس ، مف ، مو) د پکار ، د مطلب ، حاجت او ضرورت سره سم۔

**ـــــ نتیجه** :- (ـــ ن + تي + ج) (عپ، تر، اس ، مو، ج ـــ جي) د خوښې نتیجه۔

**مطمح** :- (مط + مح) (ع،اس ، مذ ، ج ـــ حي) هغه چې ورته سترګې وي ۔ هغه چې خیال او نظر کښې ساتلے شي۔ اصل مقصد ۔

**مطمئن** :- (مذ + م + ئن) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) اطمینان موندونکے ، اطمینان لرونکے ، سکون موندونکے ، په اطمینان ، په تسلی، په جمع زړۀ خاطر جمع۔

**ـــــ کول** :- تسلي ورکول۔ د پوهولو له لارې ،اطمینان ورکول۔

**ـــــ کېدل** :- په اطمینان کېدل۔ خاطر جمع کېدل۔

**مطهر** :- (م + طه + هر) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) پاک شوے ، پاک ، پاکیزه

مدني هم ، هم مکي وو
مطهر ، طاهر ، زکي وو (حافظ)

**مطهـر** :- (م + طهـ + هر) (ع ، اس / صف ، مذ ، مو ـــ ه) پاک کوونکے ، صفا کوونکے

**مطیع** :- (م + طي + ع) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) اطاعت کوونکے ، حکم منونکے ، د حکم د لاندې فرمانبردار ۔

**ـــــ کول** :- د حکم لاندې راوستل۔

**ـــــ کېدل** :- د حکم لاندې راتلل۔

**مظالم** :- (م + ظا + لم) (ع ، اس ، مذ ، ج) د ,, مظلمه ،، جمع ، ظلمونه ، سختي ، زیاتي ، بې انصافي۔

**مظاهر** :- (م + ظا + هر) (ع،اس،ج) د ,, مظهر ،، جمع ده۔ د ظاهرېدلو ځایونه ، نظارې۔ نخښې،علامې،نښانونه۔

**مظاهر** :- (م + ظا + هر) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ملاتینګوونکے ، پُشتي جوړېدونکے ، مدد کوونکے۔

**مظاهرت** :- (م + ظا + هـ + رت) (ع ،اس ،مذ) پشتي کونه ، امداد کونه،ملا تینګونه۔

**مظاهره** :- (م + ظا + هـ + ره) (عپ،اس،مو، ج ـــ رې) مدد کونه،مرسته کونه۔ د چا یا د کوم مقصد په تائید یا په مخالفت کښې جمع کېدل او په خاص لارو ، سړکونو یا بازارونو کښې چکر راتاوؤل ۔ځینې وخت څۀ جنډې ، کتبې او بینرې چې پرې خاص اعلانات یا مطالبات / چغې لیکلې وي ۔ د مظاهرې شرکاؤ نیولي وي او ورسره ورسره چغې سورې هم وهلے شي ۔جلوس، چې تائیدي یا احتجاجي یا اختلافي هر شان کېدے شي۔

**ـــــ کول** :- د یوې مطالبې یا د کوم کار په تائید یا په مخالفت کښې د خلقو جمع کېدل۔ په سړکونو ، بازارونو کښې ګشت کول او د خپل غرض د څرګندولو دپاره چغې وهل یا کتبې ګرځول نمائش کول ۔څرګندونه کول ۔لکه : د خپل طاقت مظاهره کول۔

**مظاهرې** :- (م + ظا + هـ + رې) د ,, مظاهره ،، جمع ده ۔د ,,مظاهره ،، بدل شکل دے چې د مغېره ؤ تورو سره راځي۔

**مظاهرین** :- (م + ظا + هـ + ري + ن) (ع ، اس ، ج) د ,, مظاهر ،، جمع ده ۔ مظاهره کوونکي ، (و ـــ مظاهره)۔

**مظروف** :- (مظ +رو+ف) (ع ،اس،مف،مذ،مو ـــ ه) په ظرف (لوښي) کښې اچولے شوے څیز کوم څیز چې په لوښي کښې پروت وي ۔ظرف په ځائې د مضروف ذکر کول لکه : سماوار یشېږي ، د سماوار اوبۀ یشېمي او نور۔

**مظفر** :- (م + ظف + فر) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) ظفر موندونکے ، برے موندونکے ، بریالے ، فتحیاب ، کامیاب ، د نارینهؤ په نومونو کښې راځي

**مظلم** :- (مظ + لم) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) تیارۀ ، تاریک، بې رڼا ، پټ ، مخفي ، پوشیده۔

**مظلمه** :- (مظ + ل + مه) (ع ، اس ، مو، ج ـــ مې / مظالم) ظلم ، بې انصافي ، زیاتے ، جور۔

**مظلوم** :- (مظ + لو + م) (ع ، اس مف ،مذ ،ج ـــ مان / ین) په چا چې ظلم زیاتے شوے وي۔ چا سره چې ناانصافي شوې وي۔ کمزورے۔

**مظلومه** :- (مظ + لو+ مه) (ع ، پ ، تر ،اس،مو، ج ـــ مې) د ,, مظلوم ،، تانیث دے۔

**مظلومي** :- (م + ظ + لو + مي) (و ـــ مظلومیت)۔

**مظلومیت** :- (مظ+ لو+ مي + یت) (ع ،اس،مذ) د مظلوم حالت،ظلم رسېدنه۔

**مظنون** :- (مظ + نو + ن) (ع،اس، مف، مذ، مو ـــ ه) هغه چې ظن ئې شوے وي۔ په ګمان کښې راغلے ، شکي ، مشتبه ، مشکوک۔

**مظهر** :- (مظ + هر) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / مظاهر) د ظاهرېدلو ځاے ، د څرګندېدلو ځاے۔ د تماشې ځاے ، تماشه ګاه۔ سټېج ، تهېټر۔

**مظهـر** :- (مظ + هـر) (ع ،اس ،صف ، مذ ، مو ـــ ه) څرګندونکے ، ظاهروونکے۔

چې مظهر د تورو زلفو دے حمیده
ځکه که ګبر د ترسا سپاس د کفر (حمید)

بیانوونکے ، ګواه ، شاهد ، مخبر ، جاسوس۔

**معاً** :- (م + عن) (ع، تف) ورسره، سره، د مخې سره ، فوراً ، دستي ، سمدستي

**معابـد** :- (م + عا + بد) (ع ، اس ، ج) د ,, معبد ،، جمع ده ۔معبدونه ، د عبادت ځایونه۔ جماعت ، مسجد ۔

**معادن** :- (م + عا + دن) (ع ،اس ، ج) د ,, معدن ،، جمع ده ۔معدنونه ، کانونه ، درنګونه۔

**معاذ** :- (م + عا + ذ ) (ع ، اس ، ظ) د بچ کېدلو ځاے،د بچاوې ځاے ،د پناه ځاے ، محفوظ ځاے۔

**ـــــ الله** :- (ـــ ذ + ل) (ل + ه) (ع ، تر ، جمله) د اغوذ ، معاذ الله مخفف دے ۔ د خداے پاک نه پناه غواړم۔ خداے مې دې ترې وژغوري۔ توبه توبه۔ ( څۀ خرابه خبره کولو په وخت وئیلے شي۔ چې ما دې خداے د داسې کار یا خبرې نه وساتي)۔

**معاذره** :- (م + عا + ذ + ره) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ رې) معذرت غوښتل۔

**معاذیر** :- (م + عا + ذي + ر) (ع،اس ، ج) د ,, معذرت ،، جمع ده ۔معذرتونه ، عذر غوښتنې ، بخښنې۔

**معـارج** :- (م + عـا + رج) (ع ،اس ،ج) د ,, معـراج ،، جمع ده ، معراجونه ، اندرپایې ، پارسنګونه۔

**معـارض** :- (م + عـا + رض) (ع ،اس،مذ ، مو ـــ ه) اعتـراض کوونکے ، معتـرض ، مخالف ، حریف ، مدعي ، جګړه کوونکے، مانع ، خنډ جوړېدونکے۔

**ـــــ کېدل** :- مانع کېدل ، خنډ کېدل ، د لارې مشکل جوړېدل او نور۔

**معارضه** :- (م + عا + ر + ضه) (ع ، اس ، مو، ج ـــ ضې / ات) جګړه ، تنازعه ، مناقشه ، مقدمه۔

ـــ **کول** :- جګړه کول ، تنازعه کول ، د يو بل مخالفت کول.

**معارف** :- (م + عا + رف)(ع،اس ، ج) د ,, معرفت ،، جمع ده .علوم،پوهې . شناسائي،پېژندنه پېژندګلو ، واقف خلق.

**معاش** :- (م + عا + ش)(ع ، مذ ، ج ـــونـه / ات) ژوند کول،رزق،روزي ، خوراکه هغه څيز چې پرې ګذاره وکړے شي . جاګير،جائيداد ، د ژوند کولو ځاے ، دنيا نوکري ، ملازمت ،تنخواه.

ـــ **خور** :- (ـــخو+ ر)(عپ،تر، صف مذ) رزق خوړونکے .

ـــ **دهنده** :- (ـــ د+ هن + ده)(عف، تر، صف) رزق ورکوونکے ، ملازمت يا نوکري ورکوونکے ، تنخواه ورکوونکے .

**ذريعه** ـــ :- (ذ + ري + ع + ئي ـــ)(عف ، تر، اس ، مو) د روزۍ د ګټلو ذريعه ، د روزۍ د پېدا کولو دپاره کار روزګار . د ګټې وټې يا تنخواه ذريعه.

**معاشر** :- (م + عا + شر)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــان / ين) نورو سره يو ځاے په ګډه اوسېدونکے . دوست ، ملګرے.

**معاشرت** :- (م + عا + ش + رت)(ع، اس ، مذ ،ج ـــونه) د چا سره په ګډه ژوند تېرول.يو ځاے اوسېدنه ، په ګډه ژوند ژواک کول.د چاسره عېش کول.سوسائټي.

**معاشرتي** :- (م + عا + ش + ر + تي)(عف ، تر، صف) معاشرې سره تعلق لرونکے ،ګډ ژوندون سره متعلق ،يا ورته منسوب ، ټولنيځ.

ـــ **انقلاب** :- (ـــان + ق + لا+ ب)(عف ، تر، اس ، مذ) هغه انقلاب کوم چې په يوه معاشره کښې راوستے شي يا راشي .هغه انقلاب چې د ګډ ژوند په حقله راوستے شي.

ـــ **مسائل** :- (ـــ م + سا + ئل)(ع ،تر،اس ، ج) هغه مسئلې شخړې چې د ګډ ژوندون يا د سوسائټۍ سره تلق لري ، د معاشرې يا ټولنې مسائل.

**معاشره** :- (م + عا + ش + ر)(ع ،مو،ج ـــې) د بنيادمو په ګډه سره ژوند تېرول ـچېرته چې هر سړے د ترقۍ او ښېګړې په کار کښې د يو بل په کار راځي.کلے اولس ، ټولنه.

**معاشقه** :- (م + عا + ش + قه)(ع ، اس ، مو ، ج ـــقې) عشق بازي ، يو بل سره عشق کونه ، يو بل سره مينه کونه.

**معاشي** :- (م + عا + شي)(عف ، تر ، صف) معاش سره تعلق لرونکے ، معاش ته منسوب ، د روزي ، رزق يا خوراک دپاره د امدن سره تړلے.اقتصادي يا شته منۍ واله.

ـــ **مسئلې** :- (ـــ مس + ئلې).

ـــ **مسائل** :- (ـــ م + سا + يل)(عف ، عپ تر، اس ، ج) هغه مسئلې چې د روزۍ د پېدا کولو سره تعلق لري.اقتصادي يا د شتۀ منۍ مسائل.

**معاصر** :- (م + عا + صر)(ع ، اس، صف ، مذ ، ج ـان/ين) همعصر ،د يوې زمانې ، د يو وخت ، په يوه زمانه کښې ژوند کوونکي ،د شريک يا يو دور.

**معاصرت**:- (م + عا + ص + رت)(ع ، اس، مذ) په يوه زمانه کښې اوسېدنه . په يو دور کښې اوسېدنه.

**معاصره** :- (م + عا + صر)(عپ تر،اس، مو، ج ـــرې) د ,, معاصر ،، تانيث دے

**معاصي** :- (م + عا ـــ صي)(ع ، اس ، ج) د ,, معصيت ،، جمع ده . معصيتونه ګناهونه ، جرمونه.

**معاطفت** :- (م + عا + ط + فت)(ع،اس،مذ ، ج ـــونه) سره مينه محبت کول . سره ښۀ اوسېدل.

**معاف** :- (م + عا +ف)(ع ، صف) عفو کړے شوے ، بخښلے شوے . پرېښودے شوے.

ـــ **کول** :- بخښل ، د ګناه يا جرم بدل نۀ اخستل ، عفوه کول.د کوم کار يا ذمه داري نه بري کول. لکه : د فوجي خدماتو نه / څخه معاف کول.

شهيدان نۀ دي هغه خون فروشان دي
چې خوني ته خون بها نـۀ کا معاف (رحمان بابا)

ـــ **کېدل** :- بخښلے کېدل ، د ګناه يا د قصور د سزا نه بري کېدل. ټېکس محصول وغېره نه / څخه خلاصېدل.

**معافي** :- (م +عا+في)(ع ، تر، اس ، مو) عفو کونه ، بخښنه ، د ګناه يا د قصور بدل يا سزا نۀ ورکونه . د کوم محصول ټېکس وغېره بخښنه يعني نۀ وصولونه.

ـــ **دار** :- (ـــ دا + ر)(عف ، تر،اس، مذ ، ج ـــان) هغه کس چې داسې زمکه يا جائيداد لري چې ماليه يا ټېکس پرې نۀ وي . ملکانې واله.د وقف جائيداد لرونکے.

ـــ **زمکه** :- (ـــز + م + که)(عپ تر، اس ، مو ، ج ـــکې) هغه زمکه يا جائيداد چې ټېکس يا ماليه وغېره پرې نۀ وي.

ـــ **غوښتل** :- عفوه غوښتل ، بخښنه غوښتل ، د ګناه يا د قصور په وجه د بدل يا سزا نه / څخه بري توب غوښتل ، د ګناه يا خطا په وجه د نۀ خفه کېدو درخواست کول.

ـــ **ورکول** :- عفوه کول ، بخښل ، ګناه يا قصور وربخښل.

**معافيات** :- (م + عا + في + يا + ت) د ,, معافي ،، جمع ده.اوقاف.

**معافياني** :- (م + عا + ف + يا + ني) د ,, معافي ،، جمع ده.معافۍ ، بخښنې.

**معالج** :- (م + عا + لج)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــان / ين) علاج کوونکے ، طبيب.

**معالجه** :- (م + عا + ل + جه)(ع،اس،مو، ج ـــجې) علاج ، دارو دُرمل.

ـــ **په ضد** :- (ـــ په ضد)(عپ تر، اس ، مو) د علاج هغه طريقه چې په کښې د مرض مخالف داروګان ورکولے شي .ايلوپيتهي ، انګرېزي علاج.

ـــ **په مثل** :- (ـــ پ ، م + ثل)(عف،تر،اس ، مو) د علاج هغه طريقه چې د مرض علاج په کښې د مرض موافقو داروګانو سره کولے شي . هوميوپيتهي ، يوناني علاج ، طب اسلامي.

ـــ **کول** :- علاج کول ، دارو دُرمل کول.

ـــ **کېدل** :- علاج کېدل ، دارو درمل کېدل.

**وېړيا** ـــ :- (وې + ړ + يا ـــ)(عپ ، تر، اس ، مو، ج ـــجې) مفت علاج.

ـــ **طب** :- (ـــ طب) د ,, طب ،، (طبابت) هغه څانګه چې دارو درملو سره تعلق لري.

**معاملات** :- (م + عا + م +لا+ ت)(ع ، اس ، مو ، ج)د ,, معامله ،، جمع ده . معاملې.

**تجارتي** ـــ :- (ت + جا + ر + تي ـــ)(عف ، تر،اس،مو، ج) تجارت سره تړلې معاملې.

**معاملت** :- (م + عا + م + لت)(و ـــ معامله).

**معامله** :- (م + عا + م + له)(ع،اس،مو، ج ـــلې / ات) کـار، کاروبـار، عمل کونه ، کار کونه ، کار روزګار ،لېن دېن .پېرنه پلورنه ، خريد و فروخت ، هغه خبره چې په عمل کښې راشي .واقعه . په خپله کښې فېصله ، قول ، اقرار .تعلق ، سابقه (بازاري) مجامعت ، کور والے ، جګړه ، تنازعه.

ـــ **پخول** :- قول اقرار مضبوطول ، خبره پخول.

ـــ **کول** :- لېن دېن يا کاروبار کول . (بازاري) بدفعلي کول ، مجامعت کول.

**بد ـــــ** :- (ب + د ـــ)(عف ، تر ، صف) هغه سړے چې په لېن دېن کښې کوټه وي ـ کوټه سړے ، هغه کس چې د کاروبار طريقه ئې ښۀ نۀ وي ـ ناکره کس ـ

**سنګينه ـــــ** :- (سن + ګي + نَ ـــ)(عف ، تر ، اس ، مو ، ج ـــ لې) درنه معامله ، لويه معامله ، داسې معامله چې نتيجه ئې خطرناکه وي ـ

**معاند** :- (م + عا + ند)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ين) عناد کوونکے ، دښمني کوونکے ـ دښمن ـ

**معاندانه** :- (م + عا + ن + دا + ن)(عف،تر،تف) د عناد په طور ، د دښمنۍ په انداز ، دښمن غوندې ، دښمنانه ـ

**معاندت** :- (م + عا ـ ن + د + ت)(ع ،اس،مذ ) عناد ،دښمني،ميرځي، عداوت ـ

**معانده** :- (م + عا + ن + ده)(عپ،تر، اس ، مو ، ج ـــ ې / انې) د ,,معاند،، تانيث دے ـ

**معانق** :- (م + عا + نق)(ع،اس ، فا ، مذ ، ج ـــ ان / ين) معانقه کوونکے ، تر غاړه وتونکے ـ

**معانقه** :- (م + عا + ن + قه)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ قې) تر غاړه وتنه ، بغلګيري ، غاړه غتې کېدنه ـ

**معاني** :- (م + عا + ني)(ع ، اس ، ج) د معنٰی جمع ده ـ معنې ـ

**د ـــ علم** :- (د ـــ ع + ل + م)(عپ تر ،اس، مذ ) علم معاني ، هغه علم چې په کښې دا معلومولے شي چې يو لفظ چې په عبارت کښې استعمال شوے دے ايا هغه د حال د اقتضا مطابق دے او که نۀ دے او دا چې هغه مطلوبه معنې ورکوي او که نه ـ علم بيان او علم بديع ددې مثالونه دي ـ

**معاوضت** :- (م + عا + و + ضت)(و ـــ معاوضه) ـ

**معاوضه** :- (م + عا + و +ضه)(ع ،اس،م، ج ـــ ضې) عوض ورکونه ، د يو څيز په بدله کښې بل څيز ورکونه ـ اجرت ، مزدوري ، د کار بدل ، مکافات ، تلافي ـ

**ـــــ اخيستل / اغيستل** :- بدل اخستل ، اُجرت اخستل ـ تاوان اخستل ـ

**ـــــ ورکول** :- بدل ورکول ، قيمت ورکول اُجرت ورکول ، مزدوري ورکول ـ تاوان ورکول ـ

**معاون** :- (م + عا + ون)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) اعانت کوونکے ، مدد کوونکے ، مددګار ، مرسته کوونکے ، تعاون کوونکے ، حمايتي ـ اسسټنټ (انګرېزي) ـ

**معاونت** :- (م + عا + و + نت)(ع،اس ،مذ، ج ـــ ونه) اعانت ، تعاون ، امداد ، حمايت مرسته ، ملګرتيا ، لاس کونه ـ

**ـــــ کول** :- امداد کول ، اعانت کول ، حمايت کول ، مرسته کول ، لاس کول ـ

**معاهد** :- (م + عا + هد)(ع ، اس،مذ،ج ـــ ان) عهد کوونکے ، لوظ قول کوونکے ، معاهده کوونکے ، وعده کونکے ـ

**معاهده** :- (م + عا + هـ + دَ)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ دې / ات) عهد ، قول ، لوظ ، پيمان ، اقرار ـ

**ـــــ کول** :- قول اقرار کول ، لوظ قول کول ـ عهد و پيمان کول ـ

(معاهده عموماً د لويو معاملو په حقله د قول اقرار په معنٰی کښې وئيلے شي ـ تش لوظ يا قول د معمولي وعدې په حقله هم استعمالېږي) ليکلې وعده نن سبا معاهده ګڼلے شي ـ

**معاهدي** :- (م + عا + ه + دې) د ,,معاهدې،، جمع ده ـ د ,,معاهدې،، بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ

**د ـــ تر لاندې** :- (د ـــ تر + لا + ن + دې) د قول اقرار د شرط يا د شرطونو مطابق

**د ـــ شرطونه** :- (د ـــ ش + ر + طو + نَ) ـ

**د ـــ شرائط** :- (د ـــ ش + را + ئي + ط)(عپ تر ، اس ، ج) هغه شرطونه په کومو چې دواړه ډلې رضامند شوې او قبول ئې کړي ـ

**معائب** :- (م + عا + يب) ـ

**معايب** :- (ـــــ ي + ب)(ع ،اس،ج) د ,,معيب،، جمع ده ـ معيبونه ، عيبونه ، نقصونه ، خرابۍ ـ

**معائينه** :- (م + عا + ئي + نه) ـ

**معاينه** :- (م + عا + ي + نه)(اس ، مو ، ج ـــ نې) په ,,عين،، يعني سترګو سره کتنه ـ ملاحظه کونه ـ کتل ـ څۀ رنګ والے معلومول ـ

**ـــــ کول** :- په خپلو سترګو کتل ، ملاحظه کول د نظره / سترګو تېرول ـ

**طبي ـــــ** :- (طب + بي ـــ)(انګ ، په تر ، اس، مو ، ج ـــ نې) د طبيب يا طبيبې د رنځور ملاحظه کول يا ئې کتل ـ د کوم مفعول يا فاعل د کار په بابله ئې هغه معاينه يا کتنه چې طبيبان ئې کوي او دروغ رښتيا ئې معلوموي ـ

**معبد** :- (مع + بد)(ع،اس ، مذ ، ج ـــ ونه / معابد) د عبادت ځا ے ، عبادت خانه ـ

**معبر** :- (مع + بر)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه /معابر) د عبور کولو ځا ے ، د پورې وتلو ځا ے ، ګودر ـ

**معبر** :- (مُ + عب + بر)(ع ، اس، مذ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) تعبير کوونکے ، د خوبونو مطلب بيانوونکے ـ

ما خپل سر تر فلک وليدۀ په پورته
ددې خوب مې معبره کوم تعبير دے (خوشحال)

**معبود** :- (مع + بو + د)(ع ، اس ، مف ، مذ ، ج ـــ ان) عبادت کړے شوے ،هغه چې عبادت ئې کولے شي ـ خدا ے پاک ـ

**معبوديت** :- (مع + بو + دي + يت)(ع ، اس ، مذ) معبود کېدنه ، خدائي ـ

**معتاد** :- (مع + تا + د)(ع ، اس ، مف ، مذ، مو ـــ ه) عادت کړے شوے ـ عادي ، خوګر هغه مقرره مقدار چې اثر کولے شي ـ د هر څيز مقرره عادي اندازه چې د يو خاص مودې (وخت) ورځو يا ګېنټو يا هفتو يا مياشتو او نورو سره ئې عادي تعلق وي ـ

**ـــــ لرل** :- عادت لرل ، عادت ګرځول ، يو کار تل کول ـ

شرع شته کتاب شته د عذاب د خوي عذاب شته
ښۀ کـه څۀ ثواب شته تۀ دا خوئي معتاد لره (خوشحال)

**ـــــ کول** :- عادت کول ، اموخته کول ـ

**معتبر** :- (مع + ت + بر)(ع ،اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) اعتبار کړے شوے ، د اعتبار وړ ، اعتباري ـ باوري ـ صحيح ، درست ، مشر ، عزتمند کس ـ

**ـــــ خلق** :- (ـــ خ + لق)(عپ ، تر ، اس ، ج) هغه خلق چې اعتبار لري کولے شي، باوري خلق ، اعتباري خلق ، محاورتاً عزتمند خلق ، مشران ـ

**ـــــ سړے** :- (ـــــ س + ړے)(عپ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ړي) باور يا د اعتبار وړ سړے ـ اعتباري سړے ـ محاورتاً : عزتمند ، شريف ، مشر سړے ـ

**معتبري** :- (مع ، ت+ ب + ري)(عپ ، تر ، اس ، مو) اعتبار ګڼلے کېدنه ، مشري ، لوئي لوے والے ـ ځان مشر او لوے سړے ګڼنه ، ځان ښودنه ، مشروتې ـ

**ـــــ ښئيل** :- (و ـــ معتبري کول) ـ

**ـــــ کول** :- ځان مشر مشر کول ، ځان په خلقو کښې ډېر لوے يا د عزت وړ ګڼل ـ لوئي کول ـ مشروتيې کول ـ

**معتد** :- (مع + تد)(ع ، اس ، مذ ،مو ـــــ ه) عدد کړے شوے ـ شمېرلے

شوے۔ په شمېر کښې راغلے۔ معتبر، اعتباري ، باوري۔

**ــــــبه** :- (ـــــب + ه) (ع ، تر، صف) په شمېر کښې زيات ، ډېر شمېر واله ښئېډېر ۔ معتبر، اعتباري ، باوري۔

**معتدل** :- (مع + ت + دل) (ع،اس، مف ، مذ ، مو ــــه) اعتدال واله ، په منځومانه حالت کښې ۔ متوسط ، نۀ ډېر زيات نۀ ډېر کم ۔ د اوسط درجې ، درميانه ۔ قابل قبول ، قابل برداشت ۔

**ــــــمزاجه** :- (ـــــم + زا + جه) (عپ ، تر، صف) هغه کس چې په خوئي کښې ئې نۀ ډېره تيزي وي او نۀ ښېخي يخ پخ وي۔

**معتدلانه** :- (مع + ت + د + لا + نه) (عف ، تر ، تف) د اعتدال په حالت کښې ، منځومانه حالت کښې ، په اندازه ، ميانه روۍانه حالت کښې ، مناسب حالت کښې۔

**معتــرض** :- (مـع + ت + رض) (ع ، اس/صـف ، مـذ ، مـو ـــــه) اعتـراض كـوونكے ، گوتـه نيوونكے ،نقصد را ايستونكے ، مزاحمت كوونكے ،منع كوونكے ۔

**معترضه** :- (مع + ت + رضه) د ,, معترض ،، مؤنث دے ۔

**ـــجمله** :- (ـــجم + له) (عپ ، تر، اس ، مو، ج ـــلې) هغې جملې تـه وائي چې زير موضوع سره تعلق نۀ وي خو په روان تحرير يا گفتگو كښې بيان شي ۔ خو د هغې تعلق د ليک يا د گفتگو د روان موضوع سره نۀ وي ۔ هسې خبرې پورې خبره ۔ يا خبرو كښې خبره ۔

**معترف** :- (مع + ت + رف) (ع ،اس/مف ،مذ ،مو ـــه) اعتـراف كـوونكے ، اقرار كوونكے ، د كوم حقيقت تسليموونكے ، منونكے ۔

**معتزله** :- (مع + ت + ز + له) (ع ، اس) د مسلمانانو د يوې فرقې نوم دے چې ديني عقيدې او مسئلې د عقل او پوهې په پيمانه گوري ۔ددې فرقې باني واصل بن عطاء وۀ ۔چې د حسن بصري شاگرد وۀ ۔ ددې نوم وجه تسميه اعتدال دے ۔يعني د ډلې نه بېلېدل ۔د دوي باني د خپلو نورو ملگرو نه د جدا عقيده لرلو په وجه د هغوي نه بېل شوے وۀ ځكه ورته معتزله وائي ۔

**معتزلي** :- (مـع + ت + ز + لي) (عف ، تر، صف) د معتزلـه فرقې پيروكـار ، معتزله فرقې سره تعلق لرونكے ۔د معتزلۀ عقيده لرونكے / نكي / نكې۔

**معتصم** :- (مع + ت + صم) (ع،اس/صف ، مذ ، مـو ـــه) اعتصـام لـرونكے، كلک اودرېدونكے ،قايم، ټينګ ولاړ ۔

معتصم په قرآن اوسه

لــه گناه گريزان اوسه (حافظ)

**معتقد** :- (مع + ت + قد) (ع ، اس ، صف ، مذ ، ج ـــان /ين) اعتقـاد لـرونكے ، عقيده لرونكے ،منلو واله ، منونكے ۔عقيدتمند ، مريد ۔

معتقد ئې عالي جاه دے

مخــــالف ئــې خاكستر (حافظ)

**معتقدات** :- (مع + ت + ق + دا + ت) (ع،اس، مو، ج) د ,, معتقـــــده ،، جمع ده ۔عقيدت لرونكې ښځې۔ هغه امور چې پرې د چا عقيده وي۔

**معتقده** :- (مع + ت + ق + ده) (ع ،اس ، مـو ، ج ـــــدې / انې) د ,, معتقد ،، مؤنث دے ۔

**معتكف** :- (مع + ت + كف) (ع،اس ،مذ ، ج ـــان / ين) اعتكاف كوونكے ، د عبـادت دپـاره جـامع مسجد كښـې يـو خـوا تـه پـه گـوټ كښــې كښېناستونكے ۔ددغه ناستې خپلې تقاضې وي۔

**معتل**:- (مع + تل) (ع ، اس ، صف ، مذ، مو ــه) ناروغه ، بيمار ، ناجوړه ، رنځور كمزورے ۔ (گرامر) هغه اسم يا فعل چې په كښې د علت تورے راغلے وي۔

**معتمد** :- (مع + ت + مد) (ع ،اس ، مف ، مذ ، مو ـــه) هغـه چـې اعتبـار پرې شوے وي۔د اعتبار وړ ،اعتباري ۔ باوري ، د يقين جوگه ۔

**معتمد** :- (مع + ت + مد) (ع ، اس،مذ ، ج ـ ان / ين) اعتمـاد كـوونكے ، اعتبـار كوونكے ۔باور كوونكے ، يقين كوونكے ۔

**معتوب** :- (مع + تو + ب) (اس ، مف ، مذ ، ج ـــــه) پـه عتـاب كښـې راغلے، هغه كس چې عتاب پرې شوے وي۔هغه چې قهر يا غضب پرې شوے وي۔ (دا لفظ په عربي كښې نۀ وئيلے كېږي) ۔

**معجــز** :- (مـع + جـز) (ع،اس/صـف ،مـذ ـــــه) عــاجز كـوونكے ، پـاتې راوستونكے ۔

**ــــــبيان** :- (ـــــب + يا + ن) (عف ، تر، صف ،مذ ،مو ـــه) د ډېر اعلى درجې بيـان يا تقرير وغېره ۔د فصاحت بلاغت نـه ډک بيـان يـا تقرير ، داسې بيان چې بل څوک ئې نۀ شي كولے ۔

**معجزه** :- (مع + جزه) (ع ، اس ، مو ، ج ـــزې) د ,, معجز ،، تانيث دے ۔ هغه كـار چې نور خلق ئې د كولو نه پاتې راشي ۔هغه فوق العاده كـار چې صرف د پېغمبر نه ظاهر شي۔

**ــــــښودل** :- معجزه ښكاره كول ، د پېغمبر داسې كار كول چې عام خلق ئې نۀ شي كولے ۔ محاورتاً د غېر پېغمبر چا داسې كار كول چې عـام طور سره ئې طمع يا امكان نۀ وي۔

**معجـل** :- (مـع + جـل) (ع،اس،مف،مذ ،مو ـــه) پـه تعجيـل كښـې شـوے ، پـه تلوار يا توندۍ كښې شوے ۔ د فقهې په اصطلاح كښې د ښځې نغدي يا هغه مهر چې په كښې مهلت نۀ وي۔او د نكاح نـه پس مخې سره ادا كولے شي۔

**معجل** :- (م + عجـ + جل) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــه) عجلت كـوونكے ، تادي كوونكے ، توندي كوونكے ، تلوار كوونكے ، بيړه كوونكے ۔

**معجم** :- (مع + جم) (ع ، صف ، مو ـــــه) نقطه لرونكے ، نقطې والـه ، ټكے يـا ټكي لرونكي (حرف) ، منقوط ۔

**معجمه** :- (مع + ج + مه) د ,, معجم ،، تانيث دے ۔ هغه حرف چې نقطه لري۔ د وضاحت دپاره ورسره وئيلے يا ليكلے شي۔لكه : خائے معجمه۔

**معجون** :- (مـع + جـو + ن) (ع ، اس ، ج ـــــونه / ات) اغړلے شـوے ، اخښلے شوے ۔ هغه دوائي چې د مختلفو داروگانو نـه داسې جوړه شوې وي لكه اغړلے شوي اوړه۔ سره گډ شوے ، اميخته ، مركب ، حلوا كړې شوې۔

هم تركيب د ښـﮧ و بد دے

هـــــم معــجون د خېر و شر (خوشحال)

**معدل** :- (مع + دل) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــــونه) د راگرځېـدلو ځـاے ، يـو ځـاے يا نقطه چې د چكر خوړلو نه پس ورته گرځېدونكے څيز بيا رارسي۔

**ــــــالنهار** :- (ـــــ(ل + ن + ن + ها + ر) (ع ، تر ، اس ، مذ) هغـه فرضـي خط چې د زمكې نـه چاپېره فـرض كـړے شـوے ۔چې نمـر (نور) پـه دغـه خط راشي۔نو شپه او ورځ سره برابر شي۔ خط استوا ۔

**معدن** :- (مع + دن) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــــونه/ معادن) كان ،درنگ ، پـه غرونو كښې دننه هغه ځاےچېرته چې معدنيات فلزات وي او د غــر پـه كنستلو راوښكلے شي۔

زړونــه معدن دي د جهانيانو

خو دا دوه توكه ځنې خروج كا (سعيد)

**ـــــچي** :- (ـــچي) (عف ، تر،اس ، مذ ،ج ـــان) په معدن كښې كار كوونكے ، پـه درنگ كښـې دننـه د كنستلو وغېـره كـار كـوونكے ، كـان كـن ، كـان كنستونكے ۔

**ـــشناس** :- (ـــش + نا + س) (عف ، تر،اس ، مـذ ، ج ـــان) د معـدنونو پوهان ، د كانونو پوهان ، د كانونو ماهر ۔

**معدني** :- (مع + د + ني) (عف ، تر، صف) معدن سره تعلق لرونكے ،كان يا

درنګ ته منسوب ، فلزي.

**ـــــ اوبۀ** :- (ـــــ او + ب) کاني اوبۀ.

**ـــــ پېداوار** :- د هغو څيزونو پېداوار کوم چې د معدنونو، کانونو کښې پېدا کېږي.فلزي پېداوار ،لکه : اوسپنه ، تانبه ، سرۀ زر وغېره.

**معادنيات** :- (مع + دن + يا + ت)(ع ، اس ، ج) هغه څيزونه کوم چې د غرونو د کانونو نه را ايستلے شي ـ فلزات ، دهاتونه ، قدرتي حالت کښې مياسوندے کېدونکي عناصر يا د هغو مرکبات.

**معدود** :- (مع + دو + د)(ع ،اس،مف،مذ ، مو ـــ ه) شمېرلے شوے ، شمېرلے کېدونکے ، محاورتاً لږ شان (چې په اسانه شمېرلے کېدے شي) په لږ شمېر کښې ، يو څو.

**معدودے چند** :- (مع+دو+دے+چ+ن+د)(عف ، تر ، اس ، عدد) يو څو چې (په اسانه) شمېرلے کېدے شي.يو څو، لږ شان (شمېر کښې).

**معدوديت** :- (مع + دو + دي + يت)(ع ، اس ، مذ)د شمېرلے کېدلو حالت ، شمېرلے کېدنه.

**معدوله** :- (مع + دو + له)(ع ، اس ، صف ، مو) هغه تورے (حرف) چې په ليک کښې وي خو تلفظ ئې نۀ کېږي. لکه : ,,خود ،، چې خُ + د وئيلے شي او نور.

**معدوم** :- (مع + دو + م)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) عدم شوے ، محو شوے ، نيشت شوے ، ورک شوے ـ نابوده ، (د ,,موجود،، ضد دے).

انبياء تر محمد پـــــورې معلـــوم دي
لکه ستوري ترافتاب پورې معدوم دي (خوشحال)

**ـــــ کول** :- بېخي ورکول ، نېست نابود کول ـ بنسټ وبنکل.

**ـــــ کېدل** :- محوکېدل ، بېخي ورکېدل ، نيشت کېدل ، نېست نابود کېدل ، بنسټ وتل.

**معده** :- (مع + ده)(ع ،اس،مو ، ج ـــ دې) د بدن دننه هغه حصه چې خوراک ورله ورځي او په کښې هضمېږي.ګېډه ، خېټه.

**معذرت** :- (مع + ذ + رت)(ع ،اس ، مذ ، ج ـــ ونه / معاذر) عذر کونه ، عذر ، معافي غوښتنه ، مجبوري ـ حيله ، بهانه.

**ـــــ کول** :- عذر کول ،د کوم کار د کولو نه مجبوري څرګندوول ـ معافي غوښتل

**معذور** :- (مع + ذو + ر)(ع ،اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) عذرلرونکے ،عذر کړے شوے ، مجبوره ، لاچاره ـ د بدن د کومې حصې بېکاري. لکه : فلانے د سترګو نه / څخه معذوره دے. کنډم.

**معذوري** :- (مع + ذو + ري)(و ـــ معذرت).

**معذوريت** :- (مع + ذو + ري + يت)(و ـــ معذرت).

**معرا** :- (م + عر + را).

**معرّیٰ** :- (ددغه)(ع ، صف) بربنډ ،برمند ، برهنه ،خالي ، ساده ، هغه کتاب چې حاشيې نۀ لري. هغه قرآن شريف چې ترجمه ورسره نۀ وي.د نثر هغه قسم چې ساده او مقفٰی نۀ وي.

**معراج** :- (مع + را + ج)(ع ،اس،مذ ، ج ـــ ونه) اندر پايه ، پارسنګ ، درجه ، لوړه درجه ، انتهائي عروج ، د آنحضرت صلی الله عليه وسلم اسمانونو ته تلنه.

پيک ئې جبرئيل وو د رفرف جلب نيولے
پاس ئې چې معراج وو په اسمان د محمد (خوشحال)

**د ترقۍ ـــ** :- (د + ت + رق + قۍ ـــ) د ترقۍ د ټولو نه لوړ مقام. د انتهايي درجې ترقي.

**د ـــ شپه** :- (د ـــ ش + په)(ع ،پ تر ،اس، مو) هغه شپه چې په کښې حضور پاک صلعم اسمانونو ته تلے وو.دا د نبوت د دولسم کال د رجب د مياشتې اووۀ ويشتمه شپه ګڼلے شي.

**معرب** :- (م + عر + رب)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) عربي ګرځولے شوے ، عربي ته اړولے شوے. هغه لفظ چې اصلاً د بلې ژبې وي.خو عربو د لږ څۀ بدلون نه پس په خپله ژبه کښې شامل کړے وي. لکه : ګېس > ګاز ، ټيليګراف > تيلغراف ، پيل > فيل.

**معرض** :- (مع + رض)(ع،اس، مذ ،ج ـــ ونه) د څرګندلو ځاے ، د ښکاره کولو ځاے ـ لکه: د نمائش معرض ، دنمائش ځاے ، موقع يا مېدان ، د نمائش په معرض.

**معـرض** :- (مع + رض)(ع،اس، صف،مذ ،مو ـــ ه) اعراض کوونکے، مخ اړونکے.

**معرف** :- (م + عر + رف)(ع،اس،مذ ،مو ـــ ه) تعريف کړے شوے ، نښان لګولے شوے ـ نشان زده، ښودلے شوے، څرګند کړے شوے ـ په ګوړه کړے شوے.

**معرف** :- (م + عر + رف)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) تعريف کوونکے ، مدح کوونکے ، په شاهي دربار کښې هغه افسر څوک چې دربار ته راتلونکي د خپلې خپلې درجې مطابق کښېنوي . هغه درباري څوک چې د راتلونکي کسانو بادشاه ته پېژندګلو کوي.پېژندګلوي کوونکے.

**معرفت** :- (مع + ر + فت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) پېژندګلي ، شناخت ، پېژندنه ، د خداے تعالیٰ پېژندنه ، وسيله ،ذريعه (و ـــ په معرفت د ...) ـ هغه کلام وغېره چې په کښې عرفاني مضامين وي.

**حرف ـــ** :- (حر + ف ـــ)(عف ، تر ،اس،مذ) هغه توري چې د اسمونو خاص کولو دپاره ورسره لګولے شي.په عربي کښې دا توري د الف لام دي.

لکه :- الغزالي ، النعمان ، المدينه ، په انګرېزي کښې دا توري "The" دي ـ په پښتو کښې داسې قسم توري نشته ـ خو د عربي نه پور کړي الفاظو کښې ډېر استعمالېږي.

**په ـــ د ـــ** :- (پ ـــ د ـــ) د ,,فلاني ،، په ذريعه ، د ... په ذريعه.( عموماً د ډاک په پته ليکلے شي ـ چې دا خط وغېره دې د فلاني په ذريعه ورسولے شي ).

**د ـــ مجلس** :- (د ـــ م + ج + ل + س).

**د ـــ محفل** :- (د ـــ م+ح+ف + ل)(عپ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـ ونه) هغه مجلس يا غونډه چې په کښې د عرفان (د خداے پاک پېژندنې) مضامين يا کلام اورولے شي.

**معرفه** :- (مع + ر + فه)(ع ،اس،مو) قواعدو (ګرامر) کښې هغه اسم ته وئيلے شي.د کوم خاص سړي ځاے يا د څيز نوم ته وائي.خاص نوم ، اسم معرفه. لکه : پېښور ، خيبر ، رحمان بابا.

**معرفي** :- (مع +ر + في)(عپ، تر، اس ، مو) پېژندګلوي، تعارف، شناسائي.

**ـــ کول** :- پېژندګلوي کول ،تعارف کول.

**معرفي** :- (مع + ر + في) د ,,معرفه ،، جمع ده.د ,,معرفه، بدل شکل چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.

**معرق** :- (م + عر + رق)(ع،صف،مذ، مو ـــ ه) خولې راوستونکي (دارو) يا بل څۀ لکه مرچکے او نور.

**معرکه** :- (مع + ر + که)(ع ،اس،مو، ج ـــ کې) دجنګ مېدان ، جنګړېز ، جنګ، قتال ،لويه کارنامه ، جګړه ، تنازعه ، شخړه.

**ـــ آرا** :- (ـــ آ + را)(عف ، تر ، صف) معرکه راسته کوونکے ، جنګ جوړوونکے ، زورور ، شاندار ، لکه : معرکه ارا تقرير ئې وکړ.

**ـــــ آرا کېدل** :- جنګ ته ورمخامخ کېدل ، جنګ ته صفونه ودرول.

**ـــــ آرائي** :- (ـــــ آ + را + ئي) (عف ،تر،اس،مو) معرکـــه ارا کېدنــــه ، جنګ جوړونه، جنګ تـه مخـامخ کېدنـه،جنګ .شـور فسـاد ، هنګامـه ا رائي.

**ـــــ سر کول** :- جنګ ګټل،په جنګ کښې بریالے کېدل ، لویه کارنامه سرته رسول ، لوے کار کول.

**ـــــ کول** :- جنګ کول ، جګړه کول.

زغره واغونده ملا وتړه په جنګ

دغـــــه پسه معرکه کوه د ننګ (رحمان بابا)

**ـــــ ګاه** :- (ـــــ ګا + ه) (عف،تر،اس،طر، ج ـــــ ونه) دجنګ ځـا ے ، د جنګ مېدان ، جنګړېز .

**ـــــ وهل** :- مېدان وهل ، مېدان ګټل ، په جنګ کښې برے موندل ، بریالے کېدل.څۀ لویه کارنامه سرته رسول ، کوم لوے کار کول.

**معـروض** :- (مـع + رو + ض) (ع ،اس، مـف ،مـذ ، مـو ـــــ ه) عـرض کـړے شوے ، وړاندې کړے شوے ، پېش شوے ،وئیلے شوے بیان شوے، درخواست ، عرض ، ګذارش .

**عـرض ـــــ** :- (عـر + ض ـــــ) (ع ، تر ، اس ، مـذ) د دواړو الفـاظو یـو شـان معنې دي.دوېم لفظ د تاکید دپاره راځي.درخواست،التماس،عرض.

**معروضات** :- (مع + رو + ضا + ت) (ع،اس،مو،ج) د ,,معروضـه،، جمـع ده . عرضـې ، درخواستونه ، غرضداشتونه ، عاجزانه بیان کړې خبرې یا التماسونه ، وېناګانې .

**معروضه** :- (مع +رو+ضـه) (ع،اس،مو،ج،ضې) د ,,معـروض،، تانیث دے . درخواست ، عرض ، ګذارش د عاجزۍ دپاره خپلې چیټۍ ته هم وائي.

**معـروف** :-(مـع + رو + ف) (ع ، اس ، مـف ، مـذ ، مـو ـــــ ه) مشـهور اومعلـوم ، پېژندلے شوے.څرګند .(ګرامر) کښې هغه فعل چې فاعل ئې معلوم وي (د مجهول په مقابله کښې) . (قرات) هغه حرف ، چې په وړاندېنې (ما قبـل) توري ئې پېښ وي او په اوږد راښکلې اواز وئیلے شي . ښۀ ، نېک لکه : امر بالمعروف.

**معروفه** :-(مع + رو + فه) (ع ، صف ، مو ، ج ــ فې) د ,,معروف،، تانیث دے.

**معز** :- (م + عز) (ع ، صف،مذ ، مـو ـــــ ه) عزت ورکوونکے ،غلبه ورکوونکے ،د خدا ے پاک یو صفتي نوم.

**معـزز** :-(م + عـز + زز) (ع ،اس ، مـف ، مـذ ،مو ـــــ ه) عـزت ورکـړے شـوے ، عزت لرونکے ،عزتمند ،عزت واله، بزرګ ، مشر ،عزت دار .

**معزول** :- (مع + زو + ل) (ع،اس ، مف ،مذ ، مو ـــــ ه) عزل شوے ، بېرته کړے شوے.د نوکرۍ نه ویستلے شوے ، موقوف شوے.د تخت نه کوز کړے شوے.

**ـــــ کول** :- د نوکرۍ نه اېستل ، برطرفه کول ، د تخت نه کوزول . جدا کـول ، بېرته کول.

**ـــــ کېدل** :- د نوکرۍ نه لرې کېدل ، د ملازمت نه برطرفه کېدل.د تخت نه کوزولے کېدل. د ډلې نه جدا کېدل.

**معزولول** :- (مع + زو + ل + ول) (و ـــــ معزول کول) .

**معزولي** :- (مع + زو + لي) (عف ، تر ، اس ، مو) د نوکرۍ نه وښکلے کېدنه ، برطرفي ، د تخت نه کوزولے کېدنه ، د تخت نه کوزونه. جدا کېدنه ، لرې کېدنه ، بېرته کېدنه.

**معزولیت** :-(مع + زو لي + یت) (و ـــــ معزولي) .

**معزولېدل** :- (و ـــــ معزول کېدل) .

**معسکر** :- (م + عس + کر) (ع ، اس ، ظ) د عسکر د کوزېدلو ځا ے ، د فوځ د پړاؤ کولو ځا ے ، کېمپ ، لشکرګاه.

**معشر** :- (مع + شر) (ع ، اس ، مذ) د خلقو ټولے ، ډلـه ، امت خپـل خپلوان ، د دوستانو ټولے .

**ـــــ المومنین** :- (ـــــ (ر ل) م + ء + م+ ني+ن) (ع، تر،اس، ج) د مومنانو ټولے ، د مسلمانانو امت.

**معشـر** :- (مـع + عـش + ر) (ع،اس،مف،مـذ ،مو ـــــ ه)لسـو تـه منسـوب،هغه شکل چې لس اړخه لري.د جیومیټرۍ زاویې لس ګوټیځ (شکل)د نظم یو قسم.

**معشوق** :- (مع + شو + ق) (ع ، اس ، مف، مذ ، مو ـــــ ه) چې عشق ورسره شوے وي.هغه چې ښوک پرې عاشق وي.محبوب.

**معشـوقانه** :- (م + (ع) شـو + قـا + ن) (عـف ، تر ، تف) د معشـوقو پـه انداز ، د معشوقو په شان ، زړۀ راښکونکې انداز کښې.د کېځ مکېځ طور.

**معشـوقه** :- (مـع + شـو + قـه) (ع پ تر ، اس ، مـو ، ج ـــــ قـې) د ,,معشـوق،، تانیث دے . په پښتو کښې عموماً د ,,معشـوقه،، لفظ استعمالېږي.د ,,معشوق،، لفظ کم کوز استعمالېږي.د مذکر ,,معشـوق،، دپاره هـم اکثره د معشوقه لفظ راوړے شي . په شاعرۍ کښې د ,,امرد،، دپاره هـم عموماً وئیلے شي.چې دا زما معشـوقه ده.دا زمـا معشـوق دے.کم کوز اورېدے شي . ځینو پخوانو شاعرانو ددې لفظ معشوقه تلفظ د هندي اردو د اثر تـر لاندې (م + ع + شـو + ق) هـم کـړے دے .خـو اصـل تلفظ همدغـه برنړے دے یعنې خج پـه ,,ق،، باندې دے .محاورتاً هر څۀ ځیز چې د چا ډېر زیات خوښ وي.لکه : کتاب خو زما معشوقه ده.

**معصوم** :- (مع + صو + م) (ع،اس، مف ، مذ ، مو ـــــ ه) عصـمت والـه ، د ګناه نه پاک . بې ګناه ، بې قصوره ، پاک لمن ، وړوکے بچے ، په دې معنې کښې په پښتو کښې ددې لفظ تلفظ عموماً معشوم یا ماشوم کولے شي . ساده باده ، بوله ، ناپوهه.د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي.

**د ځان نه ـــــ جوړول** :- د ځان نه ماشوم جوړول.ځان ساده کول.سره د پوهې داسې ښکاره کول لکه چې زۀ نۀ پوهېږم. عموماً طنزاً وئیلے شي. لکه : هسې ځان نه دې ماشوم جوړ کړے دے. تجاهل عارفانه کول.

**معصومه** :-(مع +صو + مَ) (عپ ، تر ، اس، مو،ج ـــــ انې) د ,,معصوم،، تانیث دے.

**معصومي** :- (مع+صو+مي) (عپ ، تر ، اس ، مو) معصومیت ، معصـوم والے ، بې ګناهي ، وړوکوالے ،ماشوموالے .

**معصومیت** :- (مع+ صو+ مي+ یت) (ع تر،اس،مذ ج ــ ونه) (و ـــــ معصومي) .

**معصیت** :- (مع + صي + یت) (ع،اس، مذ ، ج ـــــ ونه) ګناه ګاري ، ګناه کونه ، ګناه قصور ، نافرماني د حکم نه سر کښې.

**معطر** :- (م / مع + طر) (ع ،اس، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) عطر واله،خوشبویه ، خوشبوداره .

چـــــــې کشور د افغانانو معطـــر شي

د هر بیت مصرعې مې زلفې د خوبان کړي (رحمان بابا)

**ـــــ کول** :- خوشبویه کول.

د جنت په خوشبویۍ

خدا ے دماغ کړه معطر (رحمان بابا)

**معطـل** :- (م + ع + ط + طَ + ل) (ع ، اس ، صف، مـذ ، مـو ـــــ ه) بې کـاره ، د کار څخه خالي ، سست ، کاهل د څۀ مودې دپاره د کار نه / څخه بې کاره شوے (خصوصاً د کوم الزام په لړ کښې.شاړه زمکه ، بنجره زمکه.

دم پـــــه دم ئې له بازي کړه شبدا ویره

فلک نۀ دے په خپل کار کښې معطل (شبدا)

پښتنائۍ اکثر ,,ماطل،، وائي.

**ـــــ کول** :- د نوکرۍ نه د کوم الزام په وجه د څۀ مودې دپاره بې کاره کول یا ویستل عموماً تر هغې پورې چې د الزام په حقله تحقیق سر ته نۀ وي رسېدلے. ایسارول ، حصارول. ډېل کول. معطلي کول.

چې دِ بولم معطل مه کړه زر رادرومه
کــه د باز غونډې حاضر په ژغ د بیا (خوشحال)

( دلته خوشحال د معطل کول (ایسار بدل) په معنٰی استعمال کړے دے )

**ـــــ کېدل** :- د کوم الزام په وجه د ملازمت نه د څۀ مودې دپاره بې کاره کېدل . (عموماً تر هغې وخته پورې چې د الزام په حقله تفتیش سر ته اورسي.

**معطلي** :- (م +عـط +ط + لـي) (فـپ،ت،اس،مو) معطـل کېدنـه، د کـار نـه بېکاره کېدنه. ایسارتیا ،ډېل ،حېصارتیا (د پښتو عمومي تلظ ماطلي دے).

**معطلی** :- (م + عط + ط + لی) د ,, معطلي ،، جمع ده. د ,, معطلـــي ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**معطلېدل** :- (م + عط + ط + لې + د + ل) (و ـــ معطل کېدل).

**معطوف** :- م + عف + طو + ف) (ع ، اس ، مف،مذ ، مـوـــه) ګرځولے شـوے ، تاؤ شوے ، نغښتے شـوے . (ګرامر) هغـه کلمـه چې د عطف د توري نه وروستو راځي.

**ـــ علیه** :- (ـــ ع + لې + ه) (ع ، تر،اس،مذ) هغه لفظ (کلمه) یا کلام کوم چې د عطف د توري (او وغېره) نه وړاندې راغلے وي.

**معطي** :- (مع + طي) (ع ،اس، مـذ ،جـــان) عطا کـوونکے، ورکـوونکے ، بخښونکے ،د خداے پاک یو صفتي نوم.

**معظم** :- (مع +ظم) (ع،اس،مذ ،ج ـ ان / ات) لوے،غټ،کلان.

**معظم** :- (مع + ظم) (ع ، اس ، مف ، مذ ، موــــه ) عظمت ورکړے شوے ، لوي ورکړې شوې. لوے ، شریف ، لوئي لرونکے ، عزتمند .

**معظمات** :- (مع + ظ + ما + ت) (ع ، اس ، ج) لوے لوے کارونه ، لوے او اهم کارونه.

**معظمه** :- (م+عظ +مه) (ع،صف،مو) د ,, معظم ،، تانیث دے.

**مکـه ـــ** :- (م + کَ + کَـــ) (ع ، تر،اس ، مـع) د ,, مکې ،، (ښـهر) سره د احتـرام او عـزت پـه طـور د ,, معظمـه ،، لفـظ راوستے شـي .عظمـت واله،بزرګه.

**معقد** :- (م+عـق+ قـد+د ) (ع،اس، مف،مـذ ،مو ـــه) عقد ورکړے شـوے ، تړلے شوے.

**معقول** :-(مع + قو + ل) (ع،اس،مف ، مذ ، مـوـــه)عقل ورکړے شـوے، په عقل کښې راوستے. د عقل مطابق ، چې عقل ئې تسلیموي. مناسب ، مـوزون ، د منلـو وړ ، شائسـته ، سنجیده ، مهـذب هغـه چې د حـواس خمسـه پـه ذریعـه نشي محسوسېدے .کافي،ډېر،لکه : معقولـه تنخـواه اخلي او نور.

**ـــــ جواب** :- (ـــ ج + وا + ب) (عپ ، تر ، اس ، مذ ، جـــونه) هغـه جواب چې د عقل مطابق وي .هغـه جواب چې د عقـل لـه رویـه درست وي .مناسب جواب ، تسلي بخش جواب.

**ـــ دلیل** :- (ـــ د + لي + ل) (ع پ،تر،اس، مذ ،جـــونه / دلائل) داسې دلیـل چې عقل ئې مني. د عقل مطابق دلیل ، درست دلیل.

**ـــ سړے** :- (ــــ س + ړے) (عپ ، تر ، اس ، مذ ، جـــ ړي) پوهـه سړے ، مهذب سړے ، شائسته سړے ، سړیتوب واله سړے ، سم سړے.

**معقولات** :- (مـع + قـو + لا + ت) (ع،اس،مـذ ، ج) د ,, معقـول ،، جمـع ده .د فلسفې او حکمت کتابونه.

**معقولیت** :- (مع + قو + لي + یت) (ع،اس،مذ ) د عقـل سره سمون ، د عقـل سره مطابقت ، انسانیت ، سنجیدګي ، د تهذیب مطابق ، سړیتوب سره سم ، مناسب.

**معکوس** :- (مـع + کـو + س) (ع ، اس ، مـف ، مـذ ، مـوـــه ) عکـس والـه ، اړولے شوے ، اُلټه شوے ، اړولے ، کوږ.

نۀ ئې فهم او فراست وي نۀ ئې عقل
خالي نقش لکه عکس د معکوس (رحمان بابا)

**ـــــ کول** :- اپوټه کول ، اُلټه کول ، برعکس کول.

**ـــــ کېدل** :- اړولے کېدل ، اُلټه کېدل ، برعکس کېدل .پـه عکس کښې ښکاره کېدل.

راشـــــه مخ په ائینه کړه
چې پېره شي در معکوسه (خوشحال)

**معکوسول** :- (مع + کو + س + ؤ + ل) (م ـــ معکوس کول).

**معکوسېدل** :- (مع + کو + سې + دل) (مص) (و ـــ معکوس کېدل).

**معلق** :- (م + عل + لق) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــه) ځوړنـد کـړے ، اوېزاند ، اوېزان ، ځوړند .

ډېر د خیـــــال سوارۀ ترې لاړل معلق
سور په شا پرې اېښے نۀ دے دے ابلق (خوشحال)

**ـــ پل** :- (ـــ پُ / پو + ل) (عپ ، تر ، اس ، مذ ، جـــونه) ځوړند ، پل (پول) ، د پلونو یو خاص قسم دے.

**ـــــ کېدل** :- ځوړندول ، اړه لرل ، لکه : دا کار خاص شرطونو پورې معلق کړے دے.

**معلقه** :- (م + عـل + ل + ق) (ع ، صف ، مـو ، جـــ قـې) د ,, معلق ،، تانیث دے. هغه ښځه چې خاوند ورله نۀ خو طلاق ورکوي نۀ ورسره تعلق ساتي.

**معلم** :- (م + عل + ل + م) (ع ، اس ، مذ ، جـــان / ین) علم ورکوونکے،د علم زده کړه ورکوونکے ،استاذ ،مدرس.

**ـــــ ثالث** :- (ـــ (م) ثا+ل+ لث) (عف،تر،اس،مـذ) دریم معلم یا استاذ ، د بوعلي سینا لقب دے. چې سلوته نزدې شمېر کښې کتابونه ئې لیکلي دي.

**معلمه** :- (م + ع + عـل + مـه) (ع ، اس ، مـو ، جــــانې / ات) د ,, معلـم ،، تانیث دے. استاذه.

**معلمي** :- (م + ع + لْ + لِ + مي) (ع ، اس ، مو) د معلمٰی پېشه ، استاذي.

**معلن** :- (مع + لن) (ع ، اس ، مذ ، موـــه) اعلان کوونکے.

**معلول** :- (مع + لو + ل) (ع، اس ، مف ، مـذ ،مو ـــه) علت ورکړے شـوے، علت لرونکے ، هغه ځیز چې څۀ علت یعني سبب یا باعث لري . هغـه ځیـز چې د علتونـو یعنـي د اسبابو پـه ذریعـه ثابت کـړے شـي . (منطـق) نتیجه،ثمر .

**معلوم** :- ((مع + لو + م) (ع،اس ، مذ ، موـــه ) په علم کښې راغلے،پېژندلے شوے،څرګند ،ظاهر،واضح ، ښکاره ، مشهور ، معروف.

**معلومات** :- (مع + لو + ما + ت) (ع ، اس ، مو ، ج) د معلومه جمع ده.

**معلوماتي** :- (مع + لو + ما + تي) (ع ، تر، صف ، مو) معلومـاتو سـره تعلـق لـرونکے ، واقفیت زیـاتوونکے، پـه علـم کښې زیـاتے راوستونکے . لکـه : معلوماتي مقاله.

**معلومول** :- (مع + لو + م + ؤل) (مص) د کوم کار یا ځیز په حقله علم حاصلول ، واقفیت حاصلول ، پته لګول ، ازمېښت کول.

دخپل خاطر احوال به زۀ خپل یار وته معلوم کړم
بیمار بـــه لـــه طبیبه په څـو پټ لري امراض (خوشحال)

**معلومول ، چا سره** :- مقابله کول.

**معلومول ، دړ/ ور / را** :- علم ورکول ، خبر ورکول ، په علم کښې راوستل ـ ثرگندول.

د خپل خاطر احوال به زهٔ خپل یار وته معلوم کړم
بیمار بــــه لـــــه طبیبه پــــه څو پټ لري امراض (خوشحال)

**معلوموونکے** :- (مع+لو+ م + وو + ن + کے )(ع ،اس،مذ ،ج ـ کي) په علم کښې راوستونکے،واقفیت حاصلوونکے ، پته لگوونکے ، ازمېښت کوونکے ـ

**معلومه** :- (مع + لو+ مه)(ع ، صف ، مو ، ج ــــ مې) د ,, معلوم ،، تانیث دے ـ

**معلٰی** :- (مُ + عل + لا) ـ

**معلا** :- (ــــ ددغه ــــ)(ع ، صف) لوړ کړے شهٔ ، اوچت کړے شهٔ ، لوړ اوچت ، بزرگ ، لوے ، منظم ـ

**معلومېدل** :- (مع + لو + مې + دل)(مص) په علم کښې راتلل ـ ښکاره کېدل ، ثرگندېدل ـ ثابتېدل ، ثبوت ته رسېدل ـ

**معمار** :-(مع + ما + ر)(ع ، اس ، مذ ، جـــــ ان) تعمیر کوونکے ، گلکار ، مستري ـ کور یا څهٔ بل عمارت وغېره جوړوونکے ـ

هر تعمیر چې د دنیا او د عقبٰی دے
د همه واړو معمـــــــار دے رب زما (رحمان بابا)

**معماري** :- (مع + ما + ري)(عف ، تر ، اس ، مو) د تعمیر کار ، مستري توب ، گلکاري ـ

**معمبر** :- (م + عم + بر)(ع ، صف ، مذ ،مو ــــــ ه) عنبر واله ، په عنبرو خوشبویه کړے ،خوشبودار ،خوشبویه ـ

**معمر** :- (مُ + عم + مر)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــــ ه) ډېر عمر واله ، بوډا ، زوړ سړے ـ

**معمور** :- (مع + مو + ر)(ع ،اس ، مذ ، مو ـــــ ه ) ډک شوے ، پور ، پُر ، اباد ، ابادي واله ـ

**معموره** :- (مع + مو + ره) د ,, معمور ،، تانیث دے ـ ابادي ، اباد ځاے ، کلے ، ښاریه ، چې ډېر خلق په کښې اباد وي ـ کرلې شوې زمکه ـ

**معموري** :- (مع + مو + ري)(ع،اس،مو) ابادي،اباد ے،ډکېدنه،پُرکېدنه ـ

**معمول** :- (مع + مو + ل)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــــ ه) پــه عمــل کښــې راغلے ، هغه سړے په چا چې عمل شوے وي یعني د جادو وغېره عامل پرې خپل اثر اچولے وي او د خپل اثر لاندې ئې راوستے وي ـ

**معمول** :- (ددغه)(ع ، اس ، مذ ، جـــــ ونه / ات) هره ورځ په عمل کښې راتلونکے کار ، دستور ، قاعده، روش ـ

**د ــــــ مطابق** :- (د ـــــ م + طا + بق)(عپ ، تر ، تف) د عام عمل مطابق ، د عام دستور سره سم ـ

**معمولات** :- (مع + مو + لا + ت) د معمول / معموله جمع ده ـ روزانه په عمل کښې راتلونکي کارونه ـ هغه کارونه چې عادت گرځېدلے وي ـ

**معمولاً** :- (مع + مو + لاً)(ع ، تف) د عام عمل مطابق ، د روزانه عمل مطابق ، د عادي عمل مطابق ـ

**معمولي** :- (مع + مو + لي)(عپ ، تر ، صف) عام ، چې خاص نهٔ وي ـ غېر اهم ، د ادنٰی درجې یا حېثیت ، اسان ـ

**معمه** :- (م + عم + مه)(اس ، مو ، جــــــ مې) د ,, معما ،، بدل شکل دے ـ (په پښتو کښې عموماً د الف اواز په زور سره بدلېږي) ـ

**ـــــــ حل کول** :- د پېچیده یا پټې خبرې اصل معلومول ـ د اړ یا تک / چیستان جواب معلومول ـ

**ــــــ حل کېدل** :- د یوې پېچیده یا پټې خبرې اصل حقیقت معلومېدل ـ د اړ یا تک (چیستان) جواب معلومېدل ـ

**معنا** :- (مع + نا ) د ,, معنٰی ،، غلط شکل دے ـ

یادابښت :د ,, معنا ،، سره متعلق نور الفاظ د ,,معنٰی ،، تر لاندې وگورئ ـ مطلب،مدعا ، مراد ، منشاء ـ

**معناً** :- (مع + نن)(ع ، تف) د معنا پـه طور ، د معنـو پـه لحاظ سره ، د مطلب په توگه ـ

**معنبر** :- (م + عم + بر)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) عنبر واله ، چې عنبر په کښې گډ کړے شوي وي ـ عنبر امیز ، په عنبرو خوشبویه کړې ، خوشبویه ، خوشبوداره ـ

د خطا د ملک نافې واړه خجل شي
چې د تـا زلفې ښکاره شي معنبرې (خوشحال)

**معنت** :- (م + ع + ن + ت)(ع،اس، مذ ، جـــــ ونه) د ,, معانت ،، مخفف دے ـ چې اصلاً معنا ئې په خپله کښې دښمني او مېرخي ده ـ دښمني ، هلاکت ، تکلیف ، ذلیل کېدنه ـ

چې په کور کښې ئې کښېږدي په چا ئې نهٔ خوري
خــــــدایه مال ئې و ما راکړې چې معنت دے (خوشحال)

(زړه پانگه لیکي چې د خوشحال د کلیاتو په ځینو نسخو کښې دا لفظ ,,مغت،، لیکلے دې ـ چې معنٰی ئې د باجوړ په سیمه د مفت او ویړیا ده ) ـ

**معنون** :- (م + عن + ون)(ع،اس، مذ ، مذ ـــــ ه) عنوان کړے شوے ،عنوان ورکړے شوے ، عنوان لرونکے ، د چا په نوم منسوب کړے ـ

**ــــــ کول** :- عنوان ورکول،عنوان واله کول ـ د چا په نوم عنوان کول ، د چا په نوم منسوب کول ـ

**ـــــ کېدل** :-عنوان واله کېدل ـ د چاپه نوم عنوان کېدل ، د چا په نوم منسوب کېدل ـ

**معنوي** :- (مع + ن + وي)(ع ، اس صف) معنا تـه منسوب اصلي ، حقیقي ، باطني ، باطن سره تعلق لرونکے ـ د علم بدیع دوېم قسم ، چې په کښې د ابهام،مبالغې،تلمیح وغېره صنعتونه شامل دي ـ

**معنویات** :- (مع + ن + وي + یا + ت) د ,, معنوي ،، جمع ده ـ

**معنویت** :-(مع +ن+ وي+یت)(ع،اس،مذ) معنٰی لرنه،مطلب لرنه،باطنیت ـ

**معنٰی / معنٰے** :- (و ـــــ معنا ) ـ

**ـــــ خېز** :- (ـــــ خې + ز )(ع ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه خبره چې څهٔ ( ښهٔ ) مطلب ترې راووځي ـ معنٰی پیدا کوونکے ـ

**ـــــ بیانول** :- مطلب بیانول ، مطلب ښودل ـ

**ـــــ لرل** :- مطلب لرل ، اهمیت لرل ـ

**ـــــ ورکول** :- مطلب ثرگندول ـ

**اصطلاحي ـــــ** :-(اص+ط+لا+حي ـــــ)(عپ، تر،اس،مو، جـــــ نې) غېر لغوي معنٰی ، مجازي یا محاوراتي معنٰی ، د هر علم خپله ژبه وي کومې ته چې اصطلاح (Terminology) وئیلے شي ـ یو ټکے یا لغت خپله معنٰی هم لري ولې هغه په یو علم کښې بله معنٰی هم لري ـ کومې ته چې اصطلاحي معنٰی وئیلے شي ـ لکه یو ټکے ,,تناؤ،، یا (tension) دے په طبیعیاتو او په لغت کښې ئې معنٰی (راکښون) ده ـ ولې د طب په اصطلاح کښې (پرېشانی) او (اندېښنې) ته وئیلے شي دغه شان د معاشرتي سائنس کښې (کشیدگی) او (مخالفت) ته وئیلے شي ـ

**لغوي ــــــ** :- (لُ + غ + وي ـــــ)(و ـــــ اصطلاحي معنٰی) ـ

**مجازي ــــــ** :- (م + جا + زي ـــــ)(و ـــــ اصطلاحي معنٰی) ـ

**په ــــ کښې** :- په اصل کښې، په حقیقت کښې ، په مطلب کښې ـ

پـــــه اشنا باندې چې شي تللے اشنا پېښن
په معنٰی کښې شي په مړي مسیحا پېښن (حمید)

**په ــــ کښې** : مطلب ئې دادے چې ---

**معنٰي** :- (م + عا + نی) د ,, معنٰی ،، جمع ده.

**معیار** :- (مع + یا + ر)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) عیار ، د سرو زرو د کره کوټه ، معلومولو کاڼی ، زر کاڼی ، د سرو سپینو زرو د تللو وړه تله ، کاتیه ـ اندازه ، پیمانه ، نصاب ، ستېنډرډ ـ

**ـــ اوچتول / پورته کول** :- په کوم څیز کښې ښه والی یا غوره والی پیدا کول ، نقص یا کمی پوره کول.

**ـــ غورځول** :- یو څیز د مقرره اندازې نه کمول ، کمی یا نقص وغیره په کښې پیدا کول.

**ـــ غورځېدل** :- کوم څیز د مقرره اندازې نه کمېدل ـ نقص یا کمی پیدا کېدل ، لکه : د تعلیم معیار اوس ډېر غورځېدلے دے.

**په ـــ پوره** :- (پ ـــ پو + ر) په تله پوره ، په مقرره اندازه درست.

**معیاري** :- (مع + یا + ري) تاکلي حد سره سم / سمه ، باکل صحیح ، درست ، بې کمي بې نقصه.

**معیب** :- (م + عي + ب) عیب واله ، عیب ژن ، عیب ناک.

خپل عیب به خپـــل هنر ګڼې د بل هنر معیب کا

زورشوه خودبیني زاغان به بازرخوش نظاربلوځي (حافظ)

**معیت** :- (م + عي + یت)(ع ، اس ، مذ) ملګرتیا ، یو ځاے والے.

**معیشـت** :- (م + عـي + شـت)(ع ،اس، مـذ) ژونـد ، ژوند کونـه ، زیسـت ، زندګاني ، معاش ـ روزګار ، روزي (پیدا کونه) د ژوند تېرولو اسباب او ضرورتونه.

**معـین** :-(م + عـي + ن)(ع ، صـف ،مذ ، مـو ـــ ه) اعانـت کـوونکے ، امـداد کوونکے ، مددګار ،مرسته کوونکے ، مرستیال.

**معین** :- (م + عي + ن)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) مقرر شوے ، تعین شوے ، مقرره (هندسه) څلور ګوټه شکل ، چې بازوګان (ضلعې) خو ئې څلور واړه په خپلو کښې برابرې وي ـ خو زاویې ئې قائمې نهٔ وي.

**ـــ کول** :- مقرر کول ، تعین کول.

**ـــ کېدل** :- مقرر کېدل ، تعین کېدل.

**معیوب** :- (مع + یو + ب)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) عیب لرونکے ، عیب واله ، عیب ژن نقص واله.

**مغ** :- (مـغ)(ف ، اس ، مـذ ، ج ـــ ان) اتـش پرست ، هـور پرست ، د هـور عبادت کوونکے ،مجوسي ، شراب خرڅوونکے.

**مغارب** :- (م + غا + رب)(ع ، اس ، ج) د ,, مغرب ،، جمع ده.

**مغازلـه** :- (م + غـا + ز + لـه)(ع ، اس ، مـو ، ج ـــ لـې) د عشـق بـازي کـول ، مئینتوب کول ، ښځو سره خبرې کول ـ یو بل سره (په بدل) غزلې وئیل ، غزل خواني کول ، یو بل سره شریک د سندرو مجلس ګرمول.

**مغـازي** :- (م + غـا + زي)(ع ، اس ، ج) غزاګـاني ، مـذهبي جنګونـه ، هغـه جنګونه په کومو کښې چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم په خپله شامل شوے وو ـ د جنګ سره متعلق خوبې ، د غازیانو د اوصافو بیان.

**مغاک** :- (م + غا + ک)(ف،اس، مذ ، ج ـــ ونه)کنده،ډوغل مجازاً قبر.

م منزل دے زېر خـــاک دے

ورځ پرې نشته تل مغاک دے (حافظ)

**مغالطه** :- (م + غا + ل + ط)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ طې) غلط کونه ، دوکه ورکونه ، یو بل سره دوکه ورکونه ـ غلطي ، خطاوتنه.

**ـــ کښې اچول** :- تېرېستل ، دوکه کول ، غلطول.

**ـــ کېدل** :- غلط فهمي کېدل ، غلط مطلب اخیستل، تېروتل،دوکه کېدل.

**ـــ لرې کول** :- د غلطۍ په سبب پیدا کېدونکې بدګماني لرې کول، د خبرې صفائي کول ، خبره صفا کول.

**مغان** :- (مُ + غا + ن)(ف،اس،مذ ، ج) د ,, مُغ ،، جمع ده ـ اتش پرست ، شراب خرڅوونکي.

په شپه پروت ئې د مُغان په مېخانه کښې

او په ورځې مخ په لورې د محـــراب کړې (رحمان بابا)

**مغانـه** :- (مُ + غـا + نـه)(ف ، اس ، مـو) د مغـانو سـره متعلـق ،د اتـش پرسـتو غوندې

**مغانه** :- (مُ + غا + نه)(اس ، مو ، ج ـــ نې) د پتون یا ښرانګې اخري حصه ، غباندې ، مرغړې.

**مغاؤ** :- (م + غا + ؤ)(اس ، مذ) د څاروؤ یو مرض دے چې مرۍ ئې خرابه شي او پوزه ئې بنده شي او ساه سمه نشي اخستے.

**ـــ کېدل** :- د مغاؤ په مرض اخته کېدل ، (و ـــ مغاؤ).

**ـــ نیول** :- د ,, مغاؤ ،، په مرض اخته کېدل.

**مغایر** :- (م + غا + یر)(ع، صف،مذ ،مو ـــ ه) مختلف ، مخالف.

**مغایرت** :- (م + غا + ئ + رت)(ع ،اس، مذ) غیریت ، غیر کېدنه،اوپره والے ، اجنبیت، بېګاني ، پردے والے ، نورېدل ، بل شان والے.

**ـــ ځرګندول** :- پردے والے ښکاره کول ، اوپره والے ځرګندول ، ځان پردے پردے ګڼل ، بدلېدل ، نورېدل ، بل شان کېدل.

**مغبون** :- (م + غ + بو + ن) هغه څوک چې نقصان ئې موندلے وي.

**ـــ کېدل** :- نقصان موندل.

کـه نظـر کـــه د حمید و زبونۍ ته

هېڅ یو شخ به له دې غمه مغبون نشه (حمید)

**مغت** :- (م + غت)(صف ، مذ ،مو ـــ ه) مفت ، وړیا (د زړې پــــانګې محقق لیکي چې دا کلمه د باجوړ په سیمه کښې استعمالېږي ـ او په سند کښې ئې خوشحال دا شعر راوړے دے.

چې په کور کښې ئې کښېږدې په چا ئې نهٔ خوري

خـــدایه مـــال ئې و مـــا راکړې چې مغت دے (خوشحال)

د خوشحال په کلام کښې دا لفظ د ,,معنت ،، په شکل کښې راغلے دے.

**مغرب** :- (مغ + رب)(ع ، اس ، ظر) د غـروب کېـدلو ځـاے ، دنمر سـتورو وغیـره د ډوبېـدلو ځـاے ، مابنـام د یـورپ ملکونـه ، پخوا بـه عربـو ، د افریقې دنمر پرېواتهٔ ملکونو لکه بربر ، مراکو وغیره تـه وئیـل ـ پښـتانهٔ ورتـه د قبلې طرف تـه وائي ـ ځکه چې قبلـه د پښـتنو د ملک نـه / څخـه د مغرب طرف ته ده.

**مغربي** :- (مغ + ر + بي)(ع ، صـف) د مغرب،مغرب والا ،مغـرب سره تعلق لرونکے ، مغرب ته منسوب ، د یورپ د ملکونو سره تړون لرونکے.

**ـــ تهـذیب** :- (تهـ + ذي + ب)(عـپ ، تـر ، اس ، مـذ) د مغربـي ملکونـو تهذیب ، د یورپ د خلقو عادتونه ، دود دستور وغیره.

**ـــ ملکونه** :- (ـــ مل + کو + نه).

**ـــ ممالک** :- (ـــ م + ما + لک)(عپ ، تر،اس، ج) د یـورپ ملکونـه ، غربي ملکونه ، لوېدیځ هېوادونه.

**مغربیت** :- (مغ + ر + بي + یت)(اس ، مذ) مغربي تهـذیب ، د مغربـي ملکونـو د ژوند او فکر انداز ،هغه ذهنیت.

**مغـربین** :- (مـغ + ر + بـي + ن)(ع ، اس ، تثنیـه) دوه مغربـه ، دا لفـظ پـه قـرآن شریف کښـې راغلـے دې ـ او ځینو په اوړي او ژمي کښـې د نمر د پرېوتلو اخري ځایونه مراد اخستي دي ـ

**مغـرض** :- (مـغ + رض)(اس ، مـذ ،ج ـــ ان / ین) خودغرضـه ، پـه خپـل ځـان مئین.

**مغرضانه** :- (مغ + ر + ضا + نه)(عف ، تر ، صف) خودغرضانه.

**مغرق** :- (م + غر + رق) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) غرق شوے ، په اوبو کښې ډوب ، ځلېدونکے ، ځلق کوونکے چې د سرو یا سپينو زرو اوبهٔ ورکړے شوې وي.

**مغرور** :-(مغ + رو + ر)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) په غرور کښې ، غرور واله، کبرژن، کبرکوونکے ، غاوره.

**مغرورانه** :-(مغ + رو + را + نه)(عف ، تر ، تف) د مغرور سړي په انداز ، د تکبر په انداز.

**مغروري** :-(مغ + رو + ري)(عپ، تر، اس ، مو) غرور، کبر، تکبر، لوئي، غاورتوب.

هومره نـهٔ ده د خـوبانو مغروري
چې قبول کا بادشاهان په مزدوري (حميد)

**ـــــ کول** :- غرور کول ، تکبر ، لوئي کول.

ځاے دې لاندې تر زمينه
مغروري مه کړه خودبينه (حافظ)

**مغروريت** :- (مغ + رو + ري + يت)(و ـــ مغروري).

**مغرورېدل** :- (مغ + رو + رې + دل)(مص) مغرور کېدل ، کبرژن کېدل ، متکبر کېدل،لوئي کول ، غاوره کېدل.

**مغز** :- (م + غز) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) دماغ ، ماغزهٔ ، مازغهٔ ، اوچې مېوې وغېره د مېنځ برخه چې خوړلے شي .چکی ، د هر څيز د ننني برخه ، عقل ، پوهه ،خلاصه مطلب.

**ـــــ خرابېدل** :- ماغزهٔ خرابېدل ، لېونے کېدل ، پاګل کېدل ،د لېونو په شان د بې عقلۍ خبرې کول.

**ـــــ خوړل** :-

**ـــــ ښتل** :- ماغزهٔ خوړل ، ډېرې زياتې خبرې کول ، په ډېرو خبرو تنګول. بې فائدې يا فضول خبرې کول ، چا ناپوهه ناکاره کس ته دلائل وئيل او نور.

**بې ـــ** :- (بې ـــ)(ف ، تر ، صف) هغه چې مازغهٔ يا ماغزهٔ نهٔ لري .کم عقل ، بې وقوف ، لېونے ، خوشے خر.

**پُر ـــــ** :- (پُر ـــ)(ف ، تر ، صف ،مذ ،مو ـــ ه) ډېر ماغزهٔ يا مازغهٔ لرونکے ،هوښيار ، عقل واله ، ډک.

**حرام ـــــ** :- (ح + را + م ـــ)(عف ، تر،اس ، جم) د ملا د تير د ننه ماده.

**چار ـــــ** :- (چا +ر ـــــ )(ف تر،اس ، جم) د څلورو مېوو / سبزو د اوچو زړو مغز يعنې د ختيکې،د هندوانې د کدو او د بادرنګ د زړو مغز، چې طبيبان ئې د دارو په څېر تجويز کوي.

**دخر ـــــ خوړل** :- (مجازاً) ډېر کم عقل ,, بودل ،، .د کم عقل تيا په وجه په خبره نهٔ رسېدل ، په خبره نهٔ پوهېدل.

**دسپي ـــــ خوړل** :- (مجازاً) ډېرې زياتې خبرې کول .په ډېرو خبرو خلق تنګول ، په خبرو نهٔ ستړي کېدل. هسې بې هېڅه وئېدل.

**مغزاوه** :- (مغ + زا + وه)(اس،مو، ج ـــــ وې) د خيرنو جامو يا لتو زړو کو نه د نچوړې کولو نه پس راوتونکې هغه اوبهٔ چې په کښې د وينځلو په وخت د مصفا (صابن يا پوډر يا بل څهٔ) څګ او هر قسم خيرې کجيرې هم وي .مزغاوې هم ورته وئيلے شي . د جامو/ لتو / زړوکو/ کمبلو يا نورو داسې څيزونو د وينځلو په وخت استعمال شوې اوبهٔ. ګنده اوبهٔ.

**مغزن** :- (مغ + زن) (عپ ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) مغز لرونکے ، مازغهٔ / ماغزهٔ لرونکے ،دماغ لرونکے.

**سر ـــ** :- (سر ـــ)(عپ ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ډېرې خبرې کوونکے، په ډېرو خبرو بل سړے تنګوونکے ، کړتو ، کړتونے ،ماغزهٔ ښتونکے ، مازغهٔ خوړونکے ، محاورتاً سر خوړوونکے.

**مغزو** :- (مغ + زو) د ,, مغزه ،، (جمله) بدل شې چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.

**په ـــــ کښې راتلل** :- په خيال کښې راتلل ، ذهن کښې راتلل .په پوهه کښې راتلل ، په خبره پوهېدل ، په عقل کښې راتلل ، رايادېدل.

**د ـــ نه وېستل /اوباسل** :- هېرول ،کوم مقصد يا خيال پرېښودل.

**د ـــ نه کار اخيستل** :- سوچ او فکر کول،د عقل نه کار اخيستل.

**مغزي** :-(مغ + زي)د ,,مغزے ،، جمع ده. د ,,مغزے ،، بدل شکل چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.

**مغزي** :-(مغ + زي) (اس ، مو) (و ـــ مغزے). د اوبهٔ خور دپاره جوړه شوې لوېه پوله.

**ـــــ په کښې ورکول** :- د دوؤ ټوکو په مېنځ کښې نرے شان د بل رنګ ټوکے د ډول دپاره ورګنډل (و ـــــ مغزي).

**په ـــــ خبرې کول** :- د غاړې خوځولو / خوځولو سره خبرې کول .په ناز او مکېز خبرې کول.په تکبر او فن سره خبرې کول.

**مغزے** :- (مغ + زے)(اس ، مذ ، ج ـــ زي) غاړه ، ژۍ د ميـز پـوښ ، د کټ د څادر ، د بالښت ، نهالۍ يا توشک(تولايي) يا د بل کوم پوښاک د ابرې غاړه يا ژۍ چې غبرګه قط داره د بلې کپړې نه جوړه شوې او ورلګولے شوې يا ورګنډلے شوې وي.دا اکثر د بدل رنګ وي او فيته شان ښکارې.خلتو او د تماکو کڅوړو ته هم لګولے شي.مزغے هم بللے شي.

**مغـزے** :- (مـغ + زے )(اس ، مـذ ، مـو ، ج ـــــ زي) مـرۍ ، ګـردن ، ورمېږ ، څټ.

**ـــــ کول** :- ناراضه کېدل ، خفه کېدل.

**ـــــ وهل** :- په سر وهل ، سر ماتول ، مازغهٔ/ ماغزهٔ را اېستل.

يو چې سر کاندې په پورته
بـــل ئـــې ووهي مغزے (خوشحال)

**هسک ـــ ګرځېدل** :- هسکه غړانګه ګرځېدل ، په غرور يا فخر سره سر اوچت وړل.

**مغژائے** :- (مغ +ژا + ئے)(اس ،مذ )(د مروتو په سيمه) موږے ، د لرګي مېخ.

**مغسـل** :-(مـغ + سـل)(ع ، اس ، مـذ ، ج ـــان ، مـو ـــ ه) غسـل ورکـوونکے ، لمبوونکے.

**مغسول** :- (مغ + سو + ل)(ع ، اس ، مف ، مذ ،مو ـــ ه ) هغـه چـې غسـل ورکړے شوے وي،لنبولے شوے.وينځلے شوے.

**مغشوش** :-(مغ + شو + ش)(ع ،اس ، مف ،مذ ، مـو ـــ ه) هغه چې غش لري ، غش واله ، کوټه ، غېر خالص .دوکه باز ، فرېبي ، رياکار لکه : مغشوش طبيعت.

چې مغشوش غورزوې نار ته
خـــالص ځي روښان بازار ته (حافظ)

**مغصوب** :-(مغ + صو + ب)(ع،اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) غصب کړے شوے ، په زور قبضه کړے شوے.

**مغضوب** :- (مغ +ضو + ب)(ع ، اس ، مف ، مذ ،مو ـــ ه ) غضب شوے ، په غضب کښې راغلے ،هغه چې د چا د قهر غصې ښکار شوے وي.

**مغفر** :- (مغ + فر) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د اوسپنې هغه جالۍ کومه چې د خود د لاندې اغوستے شي . خود ، د اوسپنې يا فولادې ټوپۍ چې د جنګ په وخت په سرولے شي.

**ـــــ شـګاف** :- (ـــ ش + ګا + ف)(ف تر ، صـف ، مـذ ، مـو ـــــ ه) مغفـر ماتوونکے ، ډېر زيات تورزن.

کـــه مړنے يې مغفر شګاف ئې
د بادشاهانو د لوے مصاف ئې (خوشحال)

**مغفرت** :- (مغ + ف + رت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) خلاصے ، خلاصون، نجات،بخښنه ،معافي ، بري کؤنه۔

لـــــه هغې توبې څۀ چشم مغفرت دے
چې په زړۀ کښې ئې هوس بيا د گناه وي (سعيد)

**ـــــ غوښتل** :- بخښنه غوښتل ،د گناهونو معافي غوښتل ، د خدا ے نه د خپلو گناهونو د بخښنې دعا کول۔

**ـــــ کول** :- څوک بخښل ، د چا گناه يا گناهونه معاف کول،معاف کول۔

**ـــــ کېدل** :- بخښلے کېدل ، گناه يا گناهونه معاف کېدل۔

**مغفور** :- (مغ + فو + ر)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) مغفرت شوے ، بخښلے شوے ، معاف شوے ،جنتي ، بهشتي ، عموماً د کوم مړ شوي سړي د ذکر په موقع وئيلے شي۔ لکه : مرحوم او مغفور فلانے۔

**مغل** - (م + غل)(اس ، مع ، مذ ، ج ـــ ان) د منگوليا او بيا مرکزي ايشيا د مسلمانانو يو قوم ، وئيلے شي چې دا اصلاً ,, منگول ،، دي خو عربې نوم يې مغل دے او په تاريخ کښې هم په هم دغه نوم يادېدلے او پېژندلے شي ۔ د مرکزي ايشيا نه علاوه په کښې يو خاندان په سويلي ايشياء د ۱۵۲۲ء نه تر اتلسمې صدۍ عيسوي پورې حکومت اوکړو ۔بابر دلته د مغل سلطنت باني وۀ ۔د بابر زوے همايون ،دۀ زوے اکبر ، دۀ زوے جهانگير، د هغه زوے شاهجهان او د هغۀ زامنو کښې اورنگزېب عالمگير د دغه سلطنت مشهور بادشاهان تېر شوي دي ۔بابر دلته هند و پاکستان ته په پښتنو پسې د پښتنو په لمسه هڅونه راغلے وۀ ۔پښتنو نه ئې حکومت اخستے وۀ ۔فريد خان (شېرشاه سوري) د بابر زوے همايون نه حکومت واپس اخستے وۀ خو پښتنو قايم اونۀ ساتلے شو ۔مغلو سره د بابر د پلار نيکۀ له وختونو د ځينې پښتنو مرکزي ايشيا (کابل) د وختونو دښمني را روانه وه لکه واخلې يوسفزي ، دغسې د هماغه وختو او ځا ے نه ورسره د غوري خېلو (خليل ، مهمند ، داؤدزي) څۀ دوستانه هم را روانه وه خو فريد خان چې همايون د براعظمگۍ نه ايران ته په تېښته مجبور کړو نو هغه بيا د قندهار له خوا په افغانستان حملې شروع کړې چېرته ئې چې د ورور مرزا کامران حکومت وۀ ۔غوري خېل دغه وخت قندهار او گېر چاپېره پراتۀ وو ۔د همايون حملو ته خېرمه وو ۔کابل خوا ته راغلۀ او بيا د ښخوا راښکته شول۔

د ځينې کلاسيکي پښتنو شاعرانو په شاعرۍ کښې مغل د ظلم د علامت په توگه په همدغه وجه ياد دي خو زياتره مبالغه ده او تاريخ کښې داسې څۀ نشته ۔هر حمله اور طاقت او قوم همېشه په بل زور گيري کوي په رعب کښې ئې راولي ۔نو دا صرف مغلو نۀ دي کړي بلکې هغوي د اسلام ډېر خدمت کړے دے۔

**ـــــ واره** :- (ـــ وا + ره)(پ تر) د مغلو دود دستور ، د مغلو تهذيب،تمدن۔

**ـــــ والے** :- (ـــ وا + لے)(و ـــ مغل واره)۔

**مغلظ** :- (م + غل + لظ)(ع ، اس /صف ، مذ ، مو ـــ ه) سخت ، ټينگ ، (مغلظ) هغه طلاق ته وئيلے شي چې درې شي د طلاق د دريو قسمونو نه ټولو کښې سخت قسم دے ۔درې ځل طلاق نه پس که څوک بيا دغه ښځه نکاح کول غواړي نو په کښې ,,حلاله،، شرط دے ۔حلاله دې ته وائي چې دغه ښځه عدت نه پس چا بل چا ته په نکاح شي او هغه ورسره باقاعده کوروالے اوکړي او بيا ئې طلاقه کړي او عدت پوره کړي نو دغه نه پس ئې مخکښني خاوند په نکاح اخستے شي۔

د طلاق دوه نور قسمونه يو رجعي دے او بل بائن۔دغه دواړه يو يو يا دوه کېدے شي ۔رجعي کښې بغېر نوې نکاح سرے خپلې ښځې له ورتلے شي او بائن نه پس ئې نکاح نه بغېر نۀ شي ورتلے ۔مغلظ ۔يعني ,,ل،، په

کره (ـــ) سره غليظ کوونکے ، کلکوونکے ، ټينگوونکے يا ټينگ شي ۔ گنده کوونکے ، خيرنوونکے ۔

**مغلظات** :- (م + غل + لَ + ظا + ت)(ع ، اس ، ج) مجازاً بښکنځل ، زيړې سپک رد ، سپک ارزان۔

**مغلق** :- (مغ + لق)(ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) بند کړے شوے ، جرنده شوے لکه مغلق شوے ۔گران ، په پوهه کښې نۀ راتلونکے ۔مشکل ، لکه : مغلق عبارت۔

**مغلم** :- (مغ + لم)(ع ،اس ، فا ، مذ ، ج ـــ ان) اغلام کوونکے ، بچه باز ، هلک باز لواطي۔

**مغلواله** :- (م + غل + وا + ل)(پ تر ،اس ، مو) د مغلو عادت ، د مغلوخوئي بوئي، ظلم و ستم۔

يو بـــــه نۀ سم مغلواله د رقيب ستا
که زو کړے وم رښتيا له پښتنې زۀ (حميد)

**مغلوب** :- (مغ+لو+ب)(ع،اس،مف،مذ،مو ـــ ه) غلبې لاندې راغلے ،هغه چې زېر کړے شوے وي ۔په قابو کښې راغلے، هغه چې ماتې ئې کړې وي۔

په هر وخت چې دے مغلوب وي تۀ غالب ئې
تــرو هـــالــه ئـــې قـــدمونه ږده پـــــه سر (رحمان بابا)

**ـــ الغضب** :- (ـــ (بل) غ + ضب)(ع تر ، صف،مذ،مو ـــ ه) د غضب لاندې راغلے ، هغه چې غصه پرې غالبه شوې وي ۔زر او په اسانه غصه کېدونکے ، تېز مزاجه ، تند مزاجه۔

**ـــــ کول** :- د خپلې غلبې لاندې راوستل ۔زېر کول ، په قابو کښې راوستل ۔ ماتې ورکول۔

حق د حقدارانو مغلوب کړي غلو د شرعي
غم د دين ئې کم ، هوا ئې زياته نفساني شو (حافظ)

**ـــــ کېدل** :- د غلبې لاندې راتلل،زېرکېدل ، د بل د زور قوت د لاندې راتلل ، ماتې خوړل۔

**مغلوبول** :- (مغ + لو + ب + وُل)(و ـــ مغلوب کول)۔

**مغلوبيت** :- (مغ + لو + بي + يت)(ع، اس ، مذ) مغلوب کېدنه ، زېر کېدنه ، د بل د طاقت يا د زور لاندې راتلنه،کمزوري،ماتې، شکست۔

**مغلوبېدل** :- (مغ + لو + بې + دل)(و ـــ مغلوب کېدل)۔

**مغله** :- (م + غُ + لَ) د ,, مغل ،، تانيث دے۔

**مغلي** :- (م + غ + لي)(صف) ,, مغل ،، قوم سره تعلق لرونکے ۔ ,,مغل،، ته منسوب ۔د مغلو په خوئي بوئي ، دښمن۔

خپل اولس مې مغلي شۀ
نـــا امېد له خاندان شوم (خوشحال)

**مغلي** :- (مُ/مَ + غ + لي)(عـپ ، تر ، اس ، مو) مغلمه ښځه ، د زنانه ؤ په نومونو کښې هم راځي۔

**مغلے** :- (م + غُ + لے)(اس ، مذ) د پالکو ساگ۔

**مغليان** :- (م + غل + يا + ن) د ,, مغل ،، جمع ده۔

**مغليه** :- (مغ + لي + يه)(صف) مغلو سره تعلق لرونکے ، مغلو ته منسوب۔ لکه : مغليه خاندان يا حکومت۔

**مغموم** :- (مغ + مو + م)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) غم وهلے ، غمژن ، غمگين ، خفه، دلگير ، فکرمند ۔

**ـــ کول** :- غمژن کول، غمگين کول ،دلگير کول ، فکر مند کول۔

**ـــــ کېدل** :- غمژن کېدل ،غمگين کېدل ، دلگير کېدل ،فکرمند کېدل۔

**مغمومول** :- (مغ + مو + م + ول)(و ـــ مغموم کول)۔

**مغمومي** :- (مغ + مو + مي).

**مغموميت** :- (مغ + مو + مي + يت)(اس ، مو) غمژني ، غمگيني ،دلگيري ، فکرمندي.

**مغمومېدل** :- (مغ + مو + مې + دل)(و ـــ مغموم کېدل).

**مغني** :- (مغ + ني) (ع ، صف) غني هغه چې حاجتونه پوره کوي . دخدا ے پاک يو صفاتي نوم.

**مغني** :- (مُ + غن + ني)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) غنا کوونکے ، سندرغاړے ، گويا ډم.

**ـــ کېدل** :- په غنا سر کېدل ، سندرې وئيل،چغار کول.

غوږ لاهم ستا له طفيله خط وصل کا

مغني شي عندليب په خـو خـو سوزه (خوشحال)

**مغنيه** :- (مُ + غن + يه)(د ,, مغني ،، تانيث دے).

**مغولستان** :- (م + غـو + لـس + تـا + ن)(اس ، مـذ ، ظـر) د مغلـو ملـک ، تاتـار ، منگوليا.

**مغيب** :- (م + غي + ب)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) غېب کېدنه ، غېرحاضري ، د نمر پرېوتنه.

**مغيب** :- (مُ + غي + يب)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) غېب کړے شوے ، پټ ، پوشيده.

**مغيبات** :- (م + غي + ي + با + ت)(ع ،اس،مو، ج) د ,, مغيبه ،، جمع ده.

**مغير** :- (م + غـي + يـر)(ع ، اس، مـف ، مـذ ،مو ـــ ه) غېـر شـوے ، متغيـر شـوے ، بدل شوے ، بل شان شوے.

**مغير** :- (م + غـي + يـر)(ع ، اس ، صف ، مـذ ، مـو ـــ ه) غېرکوونکے ، تغير راوستونکے ، بدلوونکے ، اړوونکے ، بل شان کوونکے.

**مغيره** :- (م + غي + ې + ر)(ع ، اس ، مو) د ,, مغير ،، تانيث دے . (گرامر) هغه توري (حروف) کوم چې نورو اسمونو کښې تغير يا تبديلي راولي . لکه : د ندا ، جار ، اضافت توري وغېره.

**مغيلان** :- (مُ + غي + لا + ن)(ف ، اس ، مذ) د کيکر ونه ، کيکر.

**خار ـــ**(خا + ر ـــ)(ف تر ، اس ، مذ) د کيکر د ونې ازغـے .وئيلې ډېر ځايه ازغے شي يا اغزے.

**مفاتح** :- (م + فـا + ت + ح)(ع ، اس ، ج) د ,, مفتـاح ،، جمع ده .کنجيـانې ، چابيانې.

**مفاجات** :- (مُ + فا + جا + ت)(ع ،اس) ناڅاپه،غوره تپه، ناگهانه او نور.

**مـرگ ـــ** :- (مر + گ ـــ)(ف تر،اس،مذ) ناڅاپي راتلونکے مرگ ، غېر متوقع وخت کښې راتلونکے مرگ.

**مفاجاتي** :- (م + فا + جا + تي)(عف ، تر ، تف) مفاجات سره تعلق لرونکے ، ناڅاپه راتلونکے،ناڅاپي پېښېدونکے.

**مفاخر** :- (م + فـا + خـر)(ع ، مـذکر) د مفخـرت يـا مغخـره جمـع ، مايـه نـاز ، د فخر قابل څيزونه.د ويار جوگه څيزونه يا خبرې.

**مفخر** :- (م + فا + خر)(ع،مذکر) فخر کوونکے ، فخر کولو والا.

**مفـاخرت** :-(م + فـا + خ + رت)(ع، اس ، مـذ) فخـر کونـه ، لـويئ کونـه ، ويـاړ کونـه، لاپـې وهنـه محاورتـاً : اوچتـې اوچتـې خبـرې کـول .ډوزې ويشـتـل ، بنډلې ويشتل.

**مفاخره** :- (م + فا + خ + ر)(ع ، مؤنث) فخر کولو والا (ښځه).

**مفاد** :- (م + فا + د)(اُر،اس،مذ،ج ـــ ونه / ات) د فائدې ځا ے ، فائده .هغه څۀ چې څۀ فائده تشکيلوي.غرض ، مطلب.

**ـــ پرست** :-(ـــ پ + رس + ت)(ف تر، صف،مذ، مو ـــ ه) هغه سړے چې په کوم کار خپله ذاتي فائده په خيال کښې ساتي.خود مطلبه سړے. خود غرضه کس.

**مفارقت** :- (م + فا + ر + قت)(ع،اس،مذ،ج ـــ ونه) جدائي،بېلتون، فرقت، بېلېدنه.

**ـــ کېدل** :- جدا والے راتلل ، بېلتون راتلل.

**مفاسـد** :- (م + فـا + سـد)(ع ، اس ، ج) د ,, مفسـد ،، جمـع ده .مفسـدې خرابۍ،فتنې ، ناکارۍ ، گناه گارۍ ، بدعملۍ.

**مفاصـل** :- (م + فـا + صـل)(ع ، اس ، ج) د ,, مفصـل ،، جمع ده .د هډوکو جوړونه ، د بدن اعضاؤ جوړ ، د اعضاؤ د جوړونو تر مېنځه فاصله.

**مفاصله** :- (م + فا + ص + ل)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ لې) تر مېنځه فاصله ، لرې والے ، مسافت ، مزل ، وقفه ، د وخت تېرېدنه ، وخت.

**وجع ـــ** :- (وج + عل ـــ) د بدن د جوړونو درد.

**مفاکهه** :- (م + فـا + ک + هـ)(ع ، اس ، مو، ج ـــ هې) سره ټوقې ټقالې کول، گپونه لگول.هنه برقه کول.

**مفاهمت** :-(م + فا + هـ + مت)(ع ، اس ، مذ) مفاهمه ، سره پوهېدنه ، افهام او تفهيم ، د يـو بـل پـه خبـره پوهېدنـه .روغـه جوړه . سره شخړه يا لاتجه يا تنازعه هوارول.

**ـــ راوستل** :- د يوبل په خبره د پوهولو نه پس روغه راوستل.

**ـــ کول** :- سره د يو بل خبره اورېدل او صلحې يا فېصلې تـه رسېدل ، روغـه کول

**مفاهمه** :- (م + فا+ هـ + مه)(ع، اس ، مو ، ج ـــ مې)(و ـــ مفاهمت).

**ـــ کول** :- (و ـــ مفاهمت کول).

**مفاهيم** :- (م + فا+ هي + م)(ع ، اس ، ج) د ,, مفهوم ،، جمع ده.

**مفـت** :- (مُف + ت)(ف ، صف ، مـذ ، مـو ـــ ه) وړيـا ، بغېـر د قيمـت يـا د معاوضې څخه. ناحقه ، بې فائدې ، بغېر د محنت مشقت ، بې وجهې بې سببه.

**ـــ خوارهٔ** :- (ـــ خ + وا + رهٔ)(د ,, مفت خو ،، جمع ده).

**ـــ خـور** :- (ـــ خـو + ر)(عـف ، تـر ، صـف) بغېـر د محنـت او خـوارۍ خوراک کوونکے .بغېر د قيمت يا بدل ورکولو خوراک کوونکے ، هغه سړے چې څۀ کار نۀ کوي خو خوراک ته تيار وي.

**ـــ خوره** :-(ـــ خ + و + ره)(ف ، تر ، اس،مو، ج ـــ رې) د مفت خور تانيث دے.

**ـــ خوري** :- (ـــ خو + ري)(ف ، تر و اس ، مو) کار نۀ کول خو خوراک کول ، بغېر د کار روزگار نه خوراک کونه.

**مفتاح** :- (مف + تا+ خ)(ع،اس ،مذ،ج ـــ ونه) کونجي ، چابي ، کليد ، کيلي.

**مفتح** :- (مُ + فت + تح)(ع ، اس / صف ، مذ ، مـو ـــ ه) فتـح کوونکے ، برے وړونکے .پرانستونکے، غالب ، زور دار.

**مفتخر** :- (مف + ت + خر)(ع،اس، صف ، مذ، مو ـــ ه) فخـر کـوونکے ، لويي کوونکے ، وياړ کوونکے، لاپې وهونکے ، لاپو.

**مفترضات** :- (مف + تر + ضا + ت)(ع،اس ، مو ـــ ج) د مفترضه جمع ده . فرض کړي څيزونه يا خبرې ، فرضي څيزونه چې وجود نۀ لري.

**مفتـري** :- (مـف + ت + ري)(ع ،اس ، مـذ ، ج ـــ ان) افتـرا کـوونکے ، الـزام لگـوونکے ، تـور لگـوونکے .دروغ جـوړونکے يـا دروغ تـړونکے ، فسـاد کوونکے ، شرپسند.

**مفتش** :- (م + فت + تش)(ع ، اس ، صف ، مذ ، ج ـــ ان/ين) تفتيش کـوونکے ، اصل حال معلومونکے .دريافت کوونکے. حقائق رابرڅېره کوونکے.

**مفتقر** :- (مُف + ت + قر)(ع،اس، صف ،مذ، مو ـــ ه) فقيرکېـــدونکے، فقر اختياروونکے ، فقير ، خوار ، مفلس ، محتاجه.

**مفتو**:- (مف + تُ) د ,, مفت ،، بدل شکل چې ځينو مغيره ؤ تورو سره راځي ـ لکه : د مفتو ګټه يا خوشحالي يا فائده وغيره ـ

**د ــــ شراب**:- (د ـــ ش + را + ب) (پ تر ، اس ، مذ) ويړيا شراب ، خراب ځيز چې ويړيا په لاس راشي ـ (د مشهور متل نه اخستے شوے دے چې دمفتو شراب قاضي هم څښکلي دي) ـ

**مفتوح**:- (مف + تو + ح) (ع ،اس ، مف ، مذ ،مو ـــ ه) فتح شوے ، ګټلے شوے ، زېر کړے شوے ، پرانستے شوے ـ (ګرامر) هغه تورے (حرف) چې د زور (فتح) علامت لري ، زور واله ـ

**مفتون**:- (مف + تو + ن) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) په فتنه کښې اچولے شوے ـ عاشق ، مئين ، شيدا ـ

نشتـــــه جمعيت ارام په کونج و په خلوت کښې
ځاے دامن کوم دے خلاص بهچيرته شي مفتونه (حافظ)

**ــــ کول**:- په فتنه کښې اچول ـ مئين کول ، عاشق کول ـ

**ــــ کېدل**:- په فتنه کښې اچولے کېدل ، په فتنه کښې غورځېدل يا ګېرېدل ـ عاشق کېدل ، مئينېدل ـ

**مفته**:-د ,, مفت ،، بدل شکل چې د مغيره تورو سره راځي ـ د مفت (اسم صفت) تانيث دے ـ

**په ــــ کښې**:- (پ + ـــــ کښې) ويړيا ، بغير د څۀ وجې هيڅ بې هېڅه ـ ناحقه ـ

**مفتي**:- (مف + تي) (ع ،اس، مذ ،ج ـــ ان) فتوىٰ ورکوونکے ، په ديني مسئلو کښې شرعي فيصله ورکوونکے ـ

**ــــ کېدل**:- فتوىٰ ورکوونکے ، د شرعي لار ښودل ـ

د هر چا چې شي مفتي نفس و هوا
نــاروا شـــي د جهـــان ورته روا (حميد)

**مفتي**:- (مف + تي) (ف تر ،صف) ,,مفت ،، سره تعلق لرونکے ، د ,, مفتو ،، ـ

**ــــ ګري**:- (ـــــ ګ + ري) (عف ، تر ، اس ، مو) د مفتي کار ، مفتي توب ـ

**ــــ ګري کول**:- د مفتي کار کول ، د مفتي فرائض سرته رسول ـ

**مفر**:- (م + فر) (ع ،مذ ، ج ـــــ ونه) د تښتېدلوځاے ، د تېښتې ځاے ، د فرار ځاے ـ د بچ کېدو ځاے ـ

**ــــ ترې نشته**:- تېښته ترې نشته ـ بچ کېدنه ترې نشته ـ خلاصے ترې نشته ـ

**مفرح**:- (م + فر + رح) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) فرحتن ورکوونکے ، فرحت بخش ، خوشحالوونکے ـ ښۀ خوند والـه ، ښې ذائقې والـه ، لذت واله ـ

**ـــــ قلب**:- (ــــــ (ح) قـل + ب) (عـف ، تـر صـف) زړۀ لـه خوشـحالي ورکوونکې / کے ، زړۀ له طاقت ورکوونکې (دوائي) ـ

**مفرد**:- (مُف + رد) (ع ، صف ، مذ ، مـو ــــ ه) يواځې ، تنها ، يکړ ، د مرکب ضد ، فقط يو ځيز ـ يګانه ، بې سياله ، بې مثله ـ

**ــــ والے**:- (ـــوا + لے) (عپ ، تر ، اس) يواځې والے ، تنهائي ، ځانه ځاني ، يکړي ـ

**مفردات**:- (مـف + ر + دا + ت) (ع ، اس ، ج) د ,, مفرد ،، جمع ده ـ د پښتو حرفونه (حروف تهجي) چې سره جدا کړے شي ـ هغه کتـاب چې په کښې د غېر مرکب يا ځانله ځانله داروګانو حال درج وي ـ هغه کتـاب چې په کښې د مفرد الفاظو معنې وي ـد قـرآن شريف د الفـاظو د يـو مشـهور مستند لغات نوم ـ چې د امام راغب اصفهاني تاليف دے ـ

**مفرزه**:- (مف + ر + زه) (ع ،اس،مو، ج ـــــ زې) د لښکر يو ټولے ، د فوځ يـوه برخه ، يو فوځي ټولے ـ

**مفرس**:- (م + فر + رس) (ع ، صف) فارسي کړے شوے ، د پردي ژبې لفظ چې د لږ څه بدلون نه پس په فارسۍ کښې ئې استعمال جائز ګڼلے شوے وي ـ

**مفـرط**:- (مـف + رط) (ع ، صـف ، مـذ ، مـو ـــ ه) فـرط لـرونکے ، لـه حـده اوړېدونکے ، ډېر ، کثير ـ

**مفرق**:- (مف + رق) (ع،اس،مذ) د سر د ويښتو په مېنځ کښې لار ـ

**مفرور**:- (مـف + رو + ر) (ع ، اس مف ، مـذ ، مو ـــ ه) تښتېدلے ، فـراري ، د پوليس وغېره نه پټ شوے ـ

**ــــ تيا**:- (ـــــ ت + يا) (و ـــ مفروري) ـ

**مفروري**:- (مف + رو+ ري) (عپ ، تر اس ، مو) مفرورکېدنه ، تښتېدنه ، د پوليس وغېره نه پټ پاتې کېدنه ـ

**مفـروش**:- (مـف + رو + ش) (ع ، اس ، مـف ، مـذ ، مـو ــــ ه) فـرش کـړے شوے ، غوړولے شوے ، پروت ، پلن کړے شوے ـ

**مفروشات**:- (مف + رو + شا + ت) (ع ، اس ، مو ، ج) د ,,مفروشـــــه ،، جمع ده ـ د فرش کولو ځيزونه ، د لاندې غوړولو ځيزونه ـ

**مفـروض**:- (مـف + رو + ض) (ع ، اس ، مـف ، مـذ ، مـو ـــ ه) فـرض کـړے شوے ، هغه خبره چې وجود نۀ لري ـ خو هسې په خيال يا تصور کښې ئې وجود ومنلے شي ـ بې بنياده ـ

**مفروضـه**:- (مـف + رو + شـه) (ع ، اس ، مـو ، ج ـــ ضـې / ات) فـرض کـړے شوې خبره ، هغه خبره چې کار وجود نۀ لري خو هسې په تصور يا خيـال کښې ومنلے شي ـ بې بنياده خبره ـ

**مفروق**:- (مف + رو + ق) (ع،اس،مف ، مذ ، مو ـــ ه) جدا کړے شوے ، بېـل کړے شوے (رياضي) هغه عدد چې د بل کوم لوے عدد نه بېـل (تفريـق) کړے شي ـ

**ـــــ منه**:- (ــــــ م + ن + هـ) (ع ، اس ، عـدد) هغـه لوے عـدد چې بـل (کم عدد) ترې منها (لرې) کولے شي ـ

**مفسد**:- (مف + سد) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) فساد کوونکے ، فسادے ، پساتے ، فتنه ګر ، ورانے اچوونکے ـ

**مفسده**:- (مف + س + د) (اس ، مو ، ج ـــ دې / مفاسد) تباهي ، جګړه ، د فساد جړه ،د فساد باعث ، بربادي ـ

**ــــ پرداز**:- (ــــ پر + دا + ز) (عف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) فساد پېدا کوونکے ، فساتے ، پساتے ، شر پېدا کوونکے ـ

**مفسدي**:- (مف + س + دي) (عپ ، تر ، اس ، مو) فساد پېدا کونه ، شر پېدا کونه ، مفسده پردازي ـ

**ــــ کول**:- فساد پېدا کول،شر پېدا کول ،ورانے اچول ،خبره يا حالات خرابول ـ

**مفسر**:- (م + فس + سر) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې تفسير ئې شوے وي ـ

**مفسر**:- (م + فس + سر) (ع ، اس ، صف ، مذ ، ج ـــ ان / ين) تفسير کوونکے ، شرح کوونکے ، خصوصاً د قرآن پاک دآيتونو شرح او وضاحت کوونکے ـ

**مفسره**:- (م + فس+س + رَ) (ع ، پ ، اس ، مو ، ج ـــ رې / انې) د ,, مفسر ،، تانيث دے ـ

**مفسري**:- (م + فس + س + ري) (عپ ، تر ، اس ، مو) تفسير کونه ، شرح او توضيح کونه ، د تفسير کار کونه ـ

**مفصل**:- (م + فص + صل) (ع ،اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) تفصـــــيل ســــره وئيلے شوے ، وضاحت سره بيان شوے ـ جدا جدا کړے او بيا ن شوے ـ

**ــــ بيان**:- (ـــــ ب + يا + ن) هغه بيان چې پوره تفصيل سره ورکړے شوے وي ـ د پوره پوره حال وينا ـ هغه چې د هر څۀ په کښې وضاحت شوے وي ـ

**ـــــ حالات**:- (ـــــ حا + لا + ت)(عـپ ، تـر ،اس ، ج) هغـه حـالات چې پـه تفصيل او وضاحت سره بيان شوي وي.پوره پوره حالات.

**په ـــــ ډول** :- (پ ــــ ډو + ل) پوره تفصيل سره ، پوره پوره.په واضح ډول.

**مفصل** :- (مف + صـل)(ع ، اس ، مذ ، ـــ مفاصـل) د بـدن د اعضاؤ جوړ ، د اعضاؤ د پيوند ځاے.

**مفصلاً** :-(م + فـص +لن)(ع ، تف) پـه تفصيل سره ، د هرهر جز ، بيـان ، پـوره پوره، پوره وضاحت سره.

**مفصلات** :- (م + فص + ص + لا+ ت)(ع ، اس ، مو ، ج) د ,, مفصــــله ،، جمع ده.د ښهر نه چارچاپېره علاقه ، کلي بانډې وغېره ، مضافات.

**مفصـله**:-(م + فـص + ص + لـه)(اس ، مـو ، ج ـــ لـې / ات) د ,, مفصـل ،، تانيث دے

**ـــــ ذېل** :- (ــــ ذې + ل)(عف تر ، تف) لاندې په تفصيل سره ليکلي شوي هغه څيزونه يا خبرې چې لاندې تفصيل ورکړے شوے دے.

**مفعول** :- (مف + عو +ل)(ع،اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغـه چې څۀ فعـل (کار) پرې شوے وي .هغه اسم چې په کـوم چې د فاعـل فعـل واقـع شـوے وي.

چې بدکاري ورسره شوې وي.کُني.

يـــو ښکاره د قيــامت عـــلامت داد ے

چې فاعل باندې چې لاس تيرے مفعول کا (خوشحال)

**مفعولي** :- (مف + عو + لي)(عپ ، تر،اس، مف) مفعول سره متعلق ، مفعـول ته منسوب ، (گرامر) په جمله کښې د اسم هغه حالت.

**مفغن** :- (مُ + فغ + غـن)(ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) افغـاني شـوے ، يـو لفظ چې د بلې کومې ژبې نه ئې شکل او تلفظ د پښتو مطابق شـوے وي . پښتوشوے ، پښتو کړے شوے.

**ـــــ کول** :- د بلې کومې ژبې لفظ د پښتو د غږونو او خصوصياتو مطابق ، بدلولو نه پس په پښتو کښې استعمال کښې راوستل .پښتو کول، د پښتو رنګ او خصوصيت ورکول.

**مفقـود**:-(مف + قـو + د )(ع، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) ورک شـوے ، غائب يانيشت شوے ورک شوے. لاپته شوے.

**ـــــ الخبر** :- (ـــــ (دل) + خ + ب + ر)(ع،تر، اس،مذ) هغه کس چې څۀ خبرئې چاته نۀ وي معلوم.عدم پته ، لاپته.

**مفکر** :- (م + فک + کر)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ين) فکـر کـوونکے ، غور و خوض نه کار اخستونکے. د ژور فکر څښتن ، عالم.

**مفکره** :- (م + فک ک + ره) د ,, مفکر ،، تانيث دے.

**قـوت ـــــ** :- (قـو + و + تـې ـــــ)(ع ، ف تر ،اس، مـو) د بني ادم د فکر کولـو قوت.

**مفکوره** :- (مف + کو + ر)(ع،اس،مو، ج ــــ رې / ات) د فکـر نـه وتـې خبره ، خيالي نظريه.

**مفکوک** :- (مف + کو + ک)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) جدا کړے شوے ، پرېښودے شوے.

**مفلر** :- (مف + لر)(انګ ،اس ،مذ ،ج ـــــ ونه) وړين ګلوبند ، هغـه څيز يا الـه چې اواز پرې بند شي .په غوږونو د لګولو وړين څيز چې غوږونه پټ او ګرم ساتي

ګله زما په قول وکه

سپين کال، سور مفلر وکه (غاړه)

**مفلس** :- (مف + لس)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) افـلاس وهلے،غريب ،خوار ، محتاج ، هغه چې هېڅ ورڅخه نۀ وي.

**ـــــ کېدل** :- غريب کېدل، دښۀ حالت نه محتاجي ته غورځېدل ، بې مالـه کېدل ، نادارہ کېدل.

**مفلسي** :- (مف + ل + سي)(عپ ، تر، اس ، مو) غريبي ، حاجتمندي، تنګ حالي ، ناداري ، بې وسي.

**مفلوج** :- (مف + لو + ج)(ع ، اس ، مف ، مذ،مو ـــ ه) فـــالج وهلــے ، د فالج په مرض اخته.

**مفلوک** :- (مف + لو + ک)(ع،اس ، مف ،مذ ، مو ـــ ه) فلک زده ، تباه شوے ، برباد شوے بدحاله ، محتاجه.

**ـــ الحال** :-(ـــ حا + ل)(ع ،تر، صف ، مذ ، مو ـــ ه) تباه حاله ، برباد شوي حال کښې.په بد حال کښې ، دمحتاجۍ په حال کښې ، تباه شوے ، برباد شوے.

**مفوض** :- (م ، فو + ض)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) ورسـپارلے شـوے ، حواله کړے شوے.

**مفهـوم** :- (مـف + هـو + م)(ع، اس ، مـف ، مـذ ، ج ـــ ونـه / مفـاهيم) پـه فهـم کښې راغلے ، په پوهه کښې راتلونکے ، معنٰی ، مطلب ، منشا ، مدعا ، اراده.

**مفيـد** :- (م +فـي + د )(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) فائده من ،د فائدې ، فائده رسوؤنکے ، په کار بدونکے.

**مفيديت** :- (م+ في + دي + يت)(عف،تر،اس،مذ) فائده مندي ، پکار راتلنه.

**مفيض** :- (م + فـي + ض)(ع ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) فيض رسوونکے، فيض لرونکے ، فيض رسان.

**مقابر** :- (م + قا + ب + ر)(ع،اس،ج)د ,, مقبر ،، جمع ده.

**مقابل** :- (م + قا+ بل)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) مخامخ ، روبرو ، مخالف ، دښمن ،حريف ،برابر، مساوي ، نظير.

د خوشحال په ګل ريزۍ کښې بهار راغے

پــــه زيبا وئيـــل هـــر ګل تـــه مقـابل يم (خوشحال)

**ـــــ کول** :- مخامخ کول ، روبرو کول.

**ـــــ کېدل** :- مخامخ کېدل ، روبرو کېدل.

**مقابله**:- (م + قا + ب + له)(ع ،اس، مو، ج ـــ لې) مخامخ کېدنه، روبرو کېدنه ، برابرے ، هم سرې جاج اخستنه.تنازعه ، جګړه ، (نجوم) د يو ستوري ، بل ستوري ته مخامخ کېدنه.ديو عبارت ، بل عبارت سره کتنه.

**ـــــ کول** :- زغمل ، برداشت کول ، د مخالف سړي نه دځان د غوره ثابتولو کوښښ کول.زور ازمائي کول.دوه (يا زيات) څيزونه يو بل ته مخامخ کښېښودل او په دواړو کښې فرق ، کمے زياتے معلومول.

**ـــــ کېدل** :- زور ازمائي وغېره کېدل ، چې لږ او بر په کښې معلوم شي.

**مقابلې** :- (م + قـا + ب + لـې) د ,, مقابلـه ،، جمـع ده .د ,, مقابلـه ،، بـدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ـــــ کښې ودرېدل** :- د مقابلې زور ازمائي وغېره دپاره ور وړاندې کېدل .په انتخاباتو کښې د بل امېدوار په مقابله کښې امېدوار کېدل.

**ـــــ له راتلل** :-

**ـــــ ته ورمخ کېدل** :- د زورازمايۍ وغېره دپاره ورته مخکښې رتلل.

**د ـــــ** :-(د ـــــ) د زور ازمايۍ طاقت لرونکے ، د برابرۍ. لکه: هغـه زمـا د مقابلې نۀ دے.

**مقاتله** :- (م+ قا+ ت + له)(ع ،اس، مو، ج ـــــ لې) سره يو تر بله وژنـه ، سره يو بل قتلونه مرګ ژوبله.

**ـــــ کول** :- يو بل سره مرګ ژوبله کول.

**قتل و ـــــ** :- (ق + ت + ل + او ـــــ) جنګ ، جګړه ، مرګ ژوبله.

**مقـادير** :- (م + قـا + دي + ر)(ع ،اس ، ج) د ,, مقـدار ،، جمع ده ، مقدارونـه ،

اندازې ، شمېرونه.

**ـــــ غیر متماثله** :- (ـــ غې + ر + م +ت + ما +ث + له)(عف ، تر ، اس ، ج) (الجبرا) هغه دوه مقدارونه چې حرفونه ئې جداجدا وي.

**ـــ متماثله**:- (ـــ(ر) م+ ت + ما+ ث+ل)(عف ، تر ، اس ،ج)(الجبرا) هغه دوه رقمونه یا مقدارونه چې حرفونه ئې یو شان وي خو اعداد ئې مختلف وي.

**ـــ مجهوله** :- (ـــ مج + هو + له)(عف ، تر،اس، ج) هغه مقدارونه چې معلوم نهٔ وي.

**ـــ معلومه** :- (ـــ(ر) مع + لو + مه)(ع ف تر،اس ، ج) هغه مقدارونه چې د وړاندې نه معلوم وي.

**مقاربت** :- (م + قا + ر + بت)(ع ، اس ، مذ ،ج ـــ ونه) نزدې کېدنه ، نزدې والے،نزدیکت ،کوروالے ، صحبت.

**مقارن** :- (م + قا+ رن)(ع ، صف مذ ، موـــ ه) قرین ، نزدې ، قریب ، ورلنډ ، دوران ، اثنا.

**مقاصد** :- (م + قا + صد)(ع ،اس، ج) د ,, مقصد ،، جمع ده .مقصدونه غرضونه ، مطلبونه.

**مقاطعه** :- (م + قا+ ط + عه)(ع،اس، مو ، ج ـــ عې) قطع کونه، پرېکونه، غوڅونه ، تعلق نهٔ لرنه ، تعلق پرې کوُنه ، ځېله جداجدا کونه، بېلونه ، یو ځاے کار نهٔ کونه.

**ـــــ کول** :- قطع تعلق کول،تعلق شلول،لاتعلقه کول.

**مقال** :- (م + قا + ل)(ع،اس، مذ ،ج ـــ ونه) وینا ، گفت، وایهٔ.

زهٔ د شعر په کار هېڅ نهٔ یم خوشحال
ولې خداے مې کړهٔ په غاړه دامقال (خوشحال)

**مقاله**:- (م + قا + له)(ع،اس، مو ، ج ـــ لې / ات) د ,,مقال ،، تانیث . لوے او تحقیقي مضمون.د اخبار ادایه.

**ـــ لوستل** :- تحقیقي مقاله اورېدونکو ته اورول.

**مقام** :- (م + قا + م)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ات) د ایسارېدلو ځاے ، دقیام ځاے ، کور ، د پړاؤ ځاے ، درجه ، مرتبه ، موقع ، وخت ، محل ، قیام ، اودرېدنه ،د موسیقۍ یوه پرده.

دا د گلو خوئي خصلت دے په چمن کښې
چې راتلهٔ ئې ډېر لاړ غهٔ لړ ئې مقـــام دے (خوشحال)

**ـــ ابراهیم** :- (ـــ (م) اب + را + هي + م)(عف ، تر ، اس ، مذ) په بیت الله شریف کښې یو ځاے دے وائي چې دلته حضرت ابراهیم[ع] نمونځ کړے وهٔ.مقام مصلیٰ...د مصلے ځاے په بیت الله شریف کښې.

**ـــ حاصلول** :- (لوړه) مرتبه حاصلول ، لوے درجې ته رسېدل.

**ـــ کول** :- ایسارېدل،قیام کول ، اوسېدل ، استوگنه نیول.

**ـــ محمود** :- هغه مقام چې د صفت او ثنا وړ دے هغه لوړ او د صفت وړ مقام چې حضور پاک صلعم ورته سېدلے وو.

ځاے ئې بر مقام محمود دے
دین ئې لوے بازار د سود دے (حافظ)

**ـــ مصلے** :- (ـــ(م) + م + صل + لا)(و ـــ مقام ابراهیم).

**ځان له یو ـــ لرل** :- خپله یوه لوړه درجه لرل . په نورو ملگرو یا هم پېشه خلقو کښې یوه اوچته مرتبه لرل.

**مقامات** :- (م + قا + ما + ت)(اس ، ج) د ,,مقام ،، جمع ده. احکام ، قاعدې . د ډېرو کتابونو نوم دے .چې مقامات ویدي په کښې ډېر مشهور دے . د موسیقۍ دولس پردې.درجې یا عهدې Authorities لکه ډائرېکټر ، گورنر یا نور.

زهٔ رحمان له هسې خلقه پناه غواړم
هر چې لاڤه کړي خلاف د مقامات (رحمان بابا)

**مقامي** :- (مَ / مُ + قا + مي)(عف ، تر ، صف) کوم مقام سره متعلق ، مقام ته منسوب . د خاص ځاے ، خاص ځاے سره تړلې ځاے ، لکه: مقامي خبرونه.

**ـــ خبرونه** :- د هغه ښهر یا د علاقې خبرونه ، د کوم ځاے نه چې اخبار یا رېډیو وغېره نه خوورولے شي.

**مقاوله** :- (مُ+ قا + و + له)(ع،اس،مو ، ج ـــ لې / ات) سره مذاکره خبرې اترې ، گفت و شنید .قرار داد .

**ـــ نامه** :- (ـــ نا + مَ)(عف ، تر،اس ،مو ـــ ج ـــ مې) هغه کاغذ چې په کښې قول اقرار لیکلے شوے وي.

**تحریري ـــ** :- (تح + ري + ري ـــ) هغه خبرې اترې چې په لیک کښې راوستې شوې وي.په لیک کښې راغلې گفت و شنید .مقاول نامه.

**دبیمې ـــ** :- (د ، + بې + مې ـــ) هغه شرطونه وغېره چې د بیمې کولو په موقع ئې دواړه ډلې تسلیم کړې.

**مقاولوي** :- (مُ+ قا + و + ل + وي)(ع ف ، تر) ,, مقاوله ،، سره تعلق لرونکے .

**مقاومت** :- (م + قا + و + مت)(ع، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) برابرے ، برابرے کونه ،مقابله کونه.اودرېدل ، ټینگېدل.

**مقایسه** :- (م + قا + ي + سَ).

**مقائسه** :- (م + قا + ئ+ سَ)(ع،اس، مو، ج ـــ سې) قیاس ، قیاس جنگونه . د دوه ؤ څیزونو په خپله کښې اندازه کونه.یو څهٔ د بل په شان گڼنه.

**ـــ فلالوجي** :- (ـــ ف + لا+ لو + جي) د انگرېزۍ د ,,کمپیریټیو لنگوسټکس (Compartive Lingvistics) ترجمه .د لسانیاتو هغه څانگه چې په کښې د الفاظو مقائسه (مقابله) کولے شي.

**ـــ کول** :- د دوه څیزونو سره په خپله کښې اندازه کول ، قیاس جنگول ، په خپله کښې د مختلفو څیزونو وغېره ؤ مقابله کول او په دویې کښې فرق او یو شان والے معلومول.لکه : د هغوي د دولت مقائسه نشي کېدے.

**مقایسوي** :- (م+ قا+ ي + س+ وي)(عف،تر،صف) مقایسې سره متعلق.

**مقبره** :- (مق + ب + ره)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ رې / ات) د قبرونو ځاے ، قبرستان ، هدیره ، گورستان. دکوم لوے یا د بزرگ سړي د قبر ځاے ، روضه ، زیارت، (خصوصاً چې گنبد یا عمارت وغېره پرې جوړ شوے وي).

**مقبل** ☹ م + مق + بل)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) قبلوونکے ، د حق حکم قبلوونکے ، خوش بخته ، بختور ، اقبال مند ، مخامخ کېدونکے.

د لئیم الیم عذاب ځاے ئې جحیم دے
کـــریم خوئي شه چې نعیم ته ځې مقبله (حافظ)

**مقبـوض** :- (مـق + بـو + ض)(ع،اس، مف ، مذ ،موـــ ه) په قبضه کښې راوستے ، قبضه کړے ، اخیستے شوے.

**مقبوضه** :- (مق + بو + ضه) د ,, مقبوض ،، تانیث دے .لکه : مقبوضه کشمیر.

**مقبول** :- (مق + بو + ل)(ع ،اس ، مف ، مذ، موـــ ه) قبـــول شـــوے ، منلے شوے ،خوښ کړے ، غوره.

**مقبولیت** :- (مق + بو + لي + یت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه)د قبلېدلو حالت ، قبلېدنه ، منلے کېدنه ، خوښېدنه.

**ـــ موندل** :-

**ـــ میندل** :- مقبول کېدل ،د هر چا خوښېدل ، د هر چا خوښې حاصلول.

**مقتبس** :- (مق + ت + بس)(ع ، اس ، مف ، مذ ،موـــ ه) هغه پردے عبارت یا قول چې په خپل شعر (یا عبارت) کښې استعمال شوے وي.

**مقتبس** :- (مق + ت + بس)(ع،اس ، صف ، مذ ، موـــ ه) رڼا اخستونکے ،

فائده اخستونکے، اقتباس کوونکے ، د بل د کار وغیره نه اقتباس کوونکے .(علم بدیع) په شعر کښې د قرآن پاک آیات یا د آیات څۀ برخه د تضمین په څېر راوستونکے .په خپل شعر کښې د بل چا قول یا د قول څۀ برخه استعمالوونکے .

**مقتبسات** :- (مق + ت+ ب + سا + ت) (ع ،اس، ج )اقتباسات ، هغه عبارتونه چې د بل د کلام یا لیک نه اخستے شوي وي.

**مقتبسه** :- (مق + ت + ب + س)د ,, مقتبس ،، تانیث دے .

**مقتدا** :- (مق + ت + دا ).

**مقتدې** :- (ــددغه ــ)(ع ، اس ، مو) د چا چې اقتداء وکړے شي .د چا چې پیروي کولے شي .پېشوا ، رهنما .

**مذهبي ــ** :- (مذ + هـ + بي ــ)(عف، تر،اس،مذ ، ج ــ یان) دیني لار ښودونے ، دیني پېشوا .

**مقتدر** :- (مق + ت + در)(ع، اس، صف ، مذ ، موــ ه) اقتدار لرونکے ، اقتدار واله ، قوت واله ، زورور ، طاقتور .

**ــ لیکوال** :- (ــ لیک + وا + ل)(عپ ، تر ، اس ، مذ ، ج ــ ان) هغه لیکوال چې په قلم کښې ئې ډېر زور یا اثر وي .زورور لیکوال .

**ــ مملکت** :- (ــ مم + ل + کت)(عف ، تر ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) هغه مملکت یا حکومت چې طاقتور وي .زورور حکومت .

**مقتدي** :- (مق + ت + دي)(ع ،اس،مذ ، ج ــ ان) پیروي کوونکے ، چا پسې تلونکے ، په امام پسې نمونځ کوونکے ، د تسپې (تسبیح) عامو دانو ته هم مقتدي وائي او په سر کښې ئې اوږده دانه لګېدلې وي .هغې ته امام وائي .

چې همه واړه خوبان دې مقتدیان دي
د همه واړو امــامــه راشــه (رحمان بابا)

**مقتصد** :-(مق+ ت + صد)(ع، صف،مذ ،موــ ه ) شوم،کم خرڅ کوونکے .

**مقتضا** :- (مق + ت + ضا ).

**مقتضٰی** :- (ــددغه ــ)(ع ، اس ، مو، ج ــ ګانې / وې) تقاضا شوے ، غوښتلے شوے .مطلب ، مدعا ، مناسب ، مصلحت .

**د انصاف ــ** :- (د ، ان + صا + ف ــ)(عپ،تر،اس،مو) د انصاف تقاضه ، د انصاف غوښتنه،انصاف سره مناسب .

**د طبیعت ــ** :- (د ، ط + بي + عت ــ)(عپ تر ، اس،مو) د طبیعت یعنې دمزاج د صیغې غوښتنه .

**د عمر ــ** :- (د ، ع + مر ــ)(عپ تر ، اس ، مو) د عمر یعنې د عمر د زوړوالي غوښتنه ، د عمر مطابق ، دعمر مناسبت ، دعمر سره سم (حالت )لکه :- بوډا والي سره کمزوري .

**د وخت ــ** :- (د ، وخ + ت ــ) د وخت غوښتنه ، د وخت تقاضا .د وخت مصلحت ، وخت سره مناسب .

**مقتضب** :- (مق + ت + ضب)(ع ، اس ، مف ، مذ ، موــ ه)(عروض) د یو بحر نوم دے .چې د یو بل بحر منسرح نه راوتے دے .د منسرح وزن ,, مستفعلن مفعولات ،، (ځلور ځله) دے .او د مقتضب وزن ,,مفعولات مستفعلن ،، (ځلور ځله) دے .یعنې د منسرح د وزن نه /څخه اړولے .( اصلاً دا دې لفظ معنٰی پرېکړې شوې یا را ایستلې شوې ده ).

**مقتضي** :- (مق + ت + ضي)(ع ، اس ، صف) تقاضا کوونکے ، غوښتنه کوونکے ،غوښتونکے ،مطالبه کوونکے ، صحیح ، درست ، مناسب .

**مقتضیات** :-(مق + تض + یا + ت)(ع ، اس ، ج) د مقتضٰی جمع ده .غوښتنې ، مطالبې ، ضرورتونه .

**مقتعد** :- (مق + ت + عد)(ع ، اس ، مذ ، ج ــ ان ، موــ ه) د اعتدال نه کاراخستونکے ، په اعتدال سره خرڅ کوونکے .مجازاً دور اندېشه ، کفایت شعار ، لږ خرڅ کوونکے .

**مقتل** :- (مق + تل)(ع ، اس ، ظر ، مذ ، ج ــ ونه)د قتل کولو ځاے ، د وژلے کېدلو ځاے ، قتل ګاه .

**مقتول** :- (مق + تو + ل)(ع ، اس ، مف ، ج ــ ان ، موــ ه) قتل کړے شوے ، وژلے شوے .قتل شوے .

**مقدار** :- (مق + دا + ر)(ع ، اس ، مذ ، ج ــ ونه / مقادیر) اندازه ، شمار ، شمېر ، وزن ، تول ، ناپ ، کچ ، میزان ، جمع .

**ــ مجهول** :- (ــ(ر) + مج + هو + ل)(ع ، تر ، اس) هغه مقدار چې قیمت ئې نۀ وي معلوم .

**ــ مرکب** :- (ــ(ر) م + رک + کب)(عف ، تر ، اس) هغه مقدار چې دوه یا زیات اجزاء لري او د هر جز نه اول د جمع یا د تفریق علامت وي .

**ــ منفیه** :- (ــ(ر) من + في + يَ)(عف ، تر ، اس ج) هغه مقدار چې د منفي علامت (ــ) لري .

**مقداري** :-(مق + دا + ري)(ع ، تر ، صف) مقدار سره تعلق لرونکے ، مقدار ته منسوب .

**مقدر** :- (مُ + قد + در) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) د اګاهونه لیکلے شوے ،د اول نه اندازه شوے .تقدیر ، قسمت ، د قسمت لیک .محذوف ، هغه لفظ یا جمله چې په اصل عبارت کښې نۀ وي .خو معنې ئې اخستے شي .

**ــ تړل چاسره** :- خپل قسمت د چا په لاس کښې ورکول .خپل نصیب چا سره غوټه کول .

**ــ کېدل** :- قسمت کېدل ، نصیب کېدل .

چې څۀ وشو هغه وشو لا به کېږي مقدر (رحمان بابا)

**ــ نور بدل** :- مقدر بدلیدل ، د تقدیر لیک بدلیدل .

که تور غر له ځایه خوځي وبه خوځي
ولــې نــور بــه مـقدر نـشي هر ګز (رحمان بابا)

**د ــ لیک** :- (د + ــ لي + ک)(عپ، تر،اس) په قسمت کښې لیکلے شوے .د تقدیر لیک ، د تندي لیک ، نصیب قسمت .

**مقدرات** :- (م + قد + د + را + ت) د ,, مقدر ،، جمع ده .

**مقدرت** :- (مق + د + ر + ت)(ع ، اس ، مو ، ج ــ ونه) قدرت ، طاقت ، زور ، وس ، توان ، حېثیت ، استطاعت ، تونګري .

**ــ لرل** :- طاقت لرل، قوت لرل، وس رسېدل ،استطاعت لرل ، حېثیت لرل .

**مقدره** :- (مق + د + ر)(و ــ مقدرت ).

**مقدس** :- (م + قد + س)(ع ، اس ، مذ ، موــ ه) قدس لرونکے ، پاک ، پاکیزه

**بیت ال ــ** :- (بي + ت + ل ــ)(ع تر ، اس ، مع) پاک کور ، په شام کښې مشهور ښهر چې پخوانے نوم ئې یروشلم وو .دغلته حضرت سلمان علیه السلام یوه لویه عبادتخانه جوړه کړې وه .چې مسلمانان ، یهودیان او عیسایان درې واړه قومونه ئې مقدس ګڼي او احترام ئې کوي .نن پرون پرې یهودیانو قبضه کړې ده او په مسلمانانو ئې اسمان راکوز کړے دے .

**مقدسه** :-(م + قد + د+ س)(ع ، صف ، مو ، ج ــ سې) د ,, مقدس ،، تانیث دے

**مقدم** :- (م + قد + دم)(ع ، اس ، مف ، مذ ، موــ ه) وړاندې کړے شوے ، پېش کړے شوے .وړاندې کړے .وړاندینے ، سابق ، تېر شوے .اعلٰی ، لوړ ، غوره ، ضروري ، لازم،وړاندینی برخه .د کلي مشر ، ملک چوهدري .(منطق) د شرط اولنۍ برخه ، قبضه .

**ــــــ کول** :- وړاندې کول ، زیات اهمیت ورکول.

**ــــــ ګڼل** :- غوره ګڼل، ضروري ګڼل ، اهم ګڼل.

**مقدماً** :- (م + قد + د + ما + ن)(ع ، تف) د اولیت مطابق ،اولاً ، وړاندې ، د هر څۀ نه اول.

**مقدمات** :- (م + قد + د + ما + ت)(ع ، اس ، ج) د ,,مقدم ،، جمع ده .اولنۍ خبرې ، اولنې اقدامات.

**مقدماتي** :- (م + قد + د + ما+تي)(عف ، تر ، صف) مقدماتو ، سره تعلق لرونکے ، وړاندینۍ ، د شورو ، د شروع.

**ــــــ خبرې** :- (ــــــخ + ب + رې) د شورو (شروع) خبرې ، اولنۍ خبرې ، ابتدائي خبرې ، تمهیدي خبرې.

**مقدم** :- (مق + دم) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د سفر وغېره څخه بېرته راتلنه. د سفر نه پستنه راګرځېدنه.د قدم کښېښودلو ځاے.

**خېر ـــ کول** :- هر کلے وئیل ، خوش امدید وئیل ، هر کله راشه وئیل / کول.

**خېر ـــ کېدل** :- هر کلے کېدل ، خوش امدید وئیلے کېدل. په خېر راغلې وئیلے کېدل.

**مقدمه** :- (م + قد + دم)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ مې / ات) د ,,مقدم ،، تانیث دے ـ وړاندې تلونکے ، د فوځ وړاندینۍ دسته .سریزه ، ابتدائي لیک ، د کتاب د سر لیک دیباچه ، تمهید .

**ــــــ الجېش** :- (ــــــ (تل) + جې + ش)(ع ، تر ، اس ، مذ) د فوځ هغه برخه ، کومه چې د عام لښکر نه وړاندې لېږلے یا ساتلے شي ، پېش داول (دسته) جلودار

**مقدمه** :- (م + قد + د + م)(اس ، مو ، ج ـــ مې) په عدالت کښې دانصاف دپاره دعویٰ استغاثه.په عدالت کښې د دعوې په حقله کاروائي. (په پښتو کښې عموماً د دال زېر سره وئیلے شي).

**ــــــ باز** :- (ــــــ با + ز)(عف ، تر ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) هغه سړے چې تنازغې عدالت ته رسوي. د تنازغو د فېصلې دپاره عدالتونو له ځي. د مقدمو کولو ماهر. ډېرې مقدمې کوونکے ، د مقدمو شوق لرونکے ، لانجه مار.

**ــــــ بازي** :- (ــــــ با + زي)(عف ، تر ، اس ، مو) په عدالتونو کښې مقدمې چلونه. په عدالتونو کښې د مقدمو چلولو شوق.

**ــــــ جوړول، په چا** :- د چا برخلاف په عدالت کښې (د دروغو) استغاثه کول. کېس جوړول.

**ــــــ داخل دفتر کول** :- د عدالت د طرفه د مقدمې کاروائي ختمول او د مقدمې کاغذات محافظ خانې ته سپارل.

**ــــــ داخل دفتر کېدل** :- د مقدمې کاروائي ختمېدل او د مقدمې کاغذات وغېره محافظ خانې ته لېږلے کېدل.

**ــــــ کول** :- په عدالت کښې د انصاف دپاره دعویٰ کول ، د عدالت د دعوې پېروي کول.جګړه یا تنازعه عدالت ته وړل. محاورتاً خبره اوږدول.بحثونه کول.

**مقدور** :- (مق + دو + ر)(ع، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) قدر ورکړے شوے. قدرت،طاقت،زور، استطاعت ، (مالي) طاقت ، وس ، حېثیت.

**ــــــ لرل** :- طاقت لرل، قدرت لرل ، زور لرل (مالي) حېثیت لرل ، استطاعت لرل، وس لرل.

**مقدونیه** :- (مق + دو + ني + یه)(اس ، مع) د یونان دملک یو پخوانے ښهر ، چې دسکندر په وخت کښې ددغې ملک دارالحکومت وو.

**مقر** :- (م + قر) (ع ، اس ، ظر ، مذ ، ج ـــ ونه) د قرار ځاے ، د ایسارېدلو ځاے ، د اوسېدو ځاے ، مسکن ، ارامګاه.

**ــــــ لرل** :- استوګنه لرل ، د قرار یا د اوسېدو ځاے لرل.

**ــــــ نیول** :- ځاے نیول ،استوګنه نیول ، استوګنه اختیارول.

د حافظ فرح سرور د دوست وصال دے
کــه پــه جنت الفردوس کښې مقر نیسم (حافظ)

**مقـر** :- (مُ + قـر)(ع ،اس ، فـا ، مـذ ، مـو ـــ ه) اقـرار کـوونکے ، اعتـراف کوونکے ، منونکے. هغه سړے چې څۀ قسم دستاویز یا اشتهام لیکي.

**مقـراض** :- (مـق + را + ض)(ع ، اس ، مـذ ، ج ـــ ونـه) قېنچـي ، قېچـي ، کرینچي

بې مقراضه غوځوي د سړي عمر
هم دا لیــل او هـم نهار ددې دنیا (رحمان بابا)

**مقرب** :- (مُ + قر + ب)(ع ، اس ، مف ، مذ ، ج ـــ ان / ین) قریب کړے شوے ، نزدې کړے شوے .هغه سړے چې نزدې کړے شوے وي .مجازاً : خاص دوست، خاص ملګرے ، همراز.

**مقربه** :- (م + قر + ر + بَ)(ع ،اس ، مو،ج ـــ بې) د ,,مقرب ،، تانیث دے.

**مقرر** :- (م + قر + رر)(ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) مقرر شوے ، قرار شوے ، معین فېصله شوے ، اقرار شوے.ضرور ، خواه مخواه ، هرومرو.

**ــــــ تیا** :- (ــــــ ت+ یا)(عپ ، تر ، اس ، مو) مقررېدنه ، معین کېدنه.

**ــــــ کول** :- (و ـــ مقررول).

**ــــــ کېدل** :- (و ـــ مقررېدل).

**مقررات** :- (م + قر + ر + را + ت)د ,,مقرر ،، جمع ده.

**مقـررات** :- (م + قـر + ر + را + ت)(ع ، اس ، ج) د ,,مقرره،، جمع ده . مقرر شوې خبرې شرطونه. لکه: د قانون مقررات.

**مقرره** :- (م + قر + ر + رَ) د ,,مقرر ،، تانیث دے.

**ــــــ وخت**:- (ــــــ وخ + ت).

**ــــــ نېټه** :- (ــــــ نې + ټه) هغه وخت یانېټه چې د وړاندې نه ټاکلې شوې وي. معین وخت یا نېټه و د مرګ وخت ، پوره وخت.وعده.

**مقررول** :- (م + قر + ر + ؤل)(مص) معین کول ، ټاکل ، تقرر کول ، په نوکرۍ یا په کار لګول.

**مقررېدل** :-(م + قر + ر + رې + دل)(مص) معین کېدل ، ټاکلے کېدل ، تقرر موندل.

**مقررېدۀ** :-(م + قـر + ر + رې + دۀ)(حمص) مقرر کېدنه ، معین کېدنه ، ټاکلے کېدنه.

**مقرر** :- (م + قر + رر)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) تقریر کوونکے ، لکچر ورکوونکے.

**مقروض** :- (مق + رو + ض)(ع ، اس ، مذ و مو ـــ ه) قرض ورکړے شوے ، قرضدارے ، په چا چې قرض وي.چا چې پور اخستے وي.

**مقرون** :- (مق + رو + ن)(ع ، اس مف ، مذ ،مو ـــ ه) قرین کړے شوے ، نزدې کړے شوے .نزدې ، قرین ، (ریاضي) هغه عدد کوم سره چې ددغې عدد معدود هم راغلے وي. (د مجرد ضد چې معدود ورسره نۀ وي راغلے).

**مقسط** :-(مق + سط)(ع ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) انصاف کوونکے،عادل ، منصف ، د خداے پاک یو صفتي نوم.

**مقسوم** :- (مق + سو + م)(ع ، اس مف ، مذ ، مو ـــ ه) تقسیم شوے ، وېشلے شوے ، قسمت ، نصیب ، حصه ،بخره (ریاضي) هغه عدد چې په بل کوم عدد باندې تقسیمولے شي یا تقسیم شوے وي.

ځ هر سړي لره ورځې بخره مقسومه (خوشحال)

**ــــــ علیه** :- (ــــــ ع + لے + ه)(ع ، تر ، اس)(ریاضي) هغه عدد چې بل کوم عدد پرې تقسیمولے شي یا تقسیم شوے وي.

**مقصد**:- (مق+صد) (ع ، اس ، مذ ، ج ــونه/مقاصد) هغه ځای د کوم چې قصد وتړلے شي ،مطلب ،مدعا ،غرض (اصلاً مقصِد یعني د دال زیر سره دے).

**ــــ تر سره کول** :- غرض پوره کول ، مطلب تر سره کول.

**ــــ لرل** :- غرض لرل ، مدعا لرل ، مطلب لرل.

**مقصدي** :- (مق+ص+دي) (عپ ، تر ، صف) مقصد سره متعلق ، مقصد ته منسوب ، د مقصد ، د مطلب.

**ــــ خبره** :- (ــــ خ+ب+ر) (عپ ، تر ،اس ، مو ج ــــ رې) د مقصد خبره ، د مطلب خبره ، اصل خبره.

**مقصدیت** :- (مق+ص+دي+یت) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) مقصد لرنه ، په خبرو ، شعر و شاعرۍ وغیره کښې څهٔ خاص مقصد د نظر لاندې ساتنه.

**مقصر** :- (مُ+قص+صر) (ع ،اس ، مذ ، ج ــــ ان/ ین) قصور وار ،ګناه ګار ، مجرم ،کمے کوونکے ، کم ، ورو.

**په ــــ آواز** :-

**په ــــ غږ/ بغ** :- په ورو اواز ، په کم اواز.

**مقصره** :-(م+قص+ص+ره) (ع ، اس ، مو ، ج ــرې) د ,,مقصر ،، تانیث دے.

**مقصود** :- (مق+صو+د) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) هغه چې قصد یا اراده ئې شوې وي مطلوب ، مدعا ، غرض.

د شعر په وئیل کښې که مقصود لرې هم داد ے
پــه دا بــانه مــې ګوندې چېرې یاد کا مازولي (خوشحال)

**ــــ ته رسېدل** :- مقصد حاصلول ، مدعا پوره کېدل غرض ترسره کېدل.

**ــــ رواکول** :- مقصود ورحاصلول ، غرض پوره کول.حاجت تر سره کول.

په رقیب به ئې بې تېغه مرګ روا شي
کــه دلبره د خوشحال مقصود روا کا (خوشحال)

**ــــ موندل** :- خپل مرام ته رسېدل ، مدعا حاصلول،خپل مطلب تر لاسه کول.

که د عنقاؤ جالې غوارې کوه قاف لره ځــه
په صعوبت به مقصود مومې په اسانه نهٔ شي (حافظ)

**د ــــ ځاے** :- (د ــــ (د) ځا+ے).

**د ــــ محل** :- (د ــــ م+حل) (عپ،تر،اس،مذ ، ج ــونه) هغه ځاے چې اراده یا قصد کښې وي.د مراد ځاے ، د مطلب ځاے.(ف : منزل مقصود).

**مقصوداً** :- (مق+صو+دن) (ع ، تف) د مقصود په طور،د ارادې په طور.

**مقصودي** :- (مق+صو+دي) (عپ ، تر ، صف) مقصود سره تعلق لرونکے ، ارادې ته منسوب ، ارادې سره تړلے ، مقصدي.

**ــــ نتائج** :- (ــــ ن+تا+یج).

**ــــ نتیجې** :- (ــــ ن+تي+جې) (عف ، تر، اس ، ج) هغــه نتیجــې کومې چې د اول نه په مقصد یا اراده کښې ټاکلې شوې وي.

**مقصودېدل** :- (مق+صو+دې+دل) (مص) اراده جوړېدل ، اراده کېدل ، مقصود جوړېدل ، مرام ګرځېدل.

**مقصور** :- (مق+صو+ر) (ع ، مف ، مذ ،مو ــــ ه) قصر کړے شوے،کم کړے شوے،کم شوے ،کوتاه ، کم ، لږ ، هغه الف چې مد پرې نهٔ وي ، لنډ الف ، لنډ غږے الف ، (په مقابله کښې د الف ممدوده).

**مقصوره** :- (مق+صو+ره) (ع ، اس ، مف ، مو ، ج ــــ رې) د ,,مقصور،، تانیث دے .قصر واله الف ، (و ــــ الف مقصوره) کوټګۍ ، (د عبادت) حجره. په جماعت کښې دامام د ودرېدو ځاے.

**الف ــــ** :- (ا+ل+ف ــــ) (عف ، تر ، اس، مذ) هغه الف چې د پاسه پرې د مد علامت نهٔ وي.لنډ الف.لنډ غږے الف. (په مقابله کښې د الف ممدوده).

**مقطر** :- (م+قط+ر) (ع ، اس، مف ،مذ ،مو ــــ ه) څاڅکے څاڅکے راڅڅولے شوے او صفا کړے شوے.

**ــــ کول** :- تقطیر کو. اوبهٔ (بهېدونکے) څیز چڼول.

**مقطرے** :- (م+قط+رے) د ,,مقطر ،، جمع ده.

**ــــ اوبهٔ** :- (ــــ او+ب) (عپ ، تر ، اس ، جم) صفا کړے شوې اوبهٔ.

**مقطع** :- (مق+طع) (ع ، اس ، مو ، ج ــ عې) قطع شوے ، غوځ شوے ، ټکړې ټکړې کړې. د غزل یا د قصیدې وغېره اخري شعر چې شاعر په کښې خپل تخلص راولي.

د غزل نهٔ ئې مطلع نهٔ ئې مقطع ده
نهٔ صفت نهٔ ئې تشبیه نهٔ ئې مثال (خوشحال)

**مقطع** :- (م+قط+طع) (ع ، صف) قطع کړے شوے ، تراشلے شوے. په تراشلو قطع کولو ښکلا ورکړې ،مهذب ، سړیتوب واله ، اعتبار ،مندرے یا ټیمرے سړے.

**مقطعات** :- (م+قط+ط+عا+ت) (ع ،اس ، ج) د ,,مقطع ،، جمع ده. د ټوکې ورې ورې قینچې کړې ټکړې (خصوصــاً د ربنــمین ټوکې) د نظمونو وارهٔ اقتباسات یا ټکړې ، وارهٔ نظمونه. (و ــــ حروف مقطعات).

**حروف ــــ** :- (ح+رو+ف ــــ) (عف ، تر ، اس ، ج) هغه توري (حرفونه) کوم چې د قرآن پاک د ځینو سورتونو په سر کښې راغلي دي .لکه : الف ، لام ، میم (الٓمٓ) او نور.

**مقطوع** :- (مق+طو+ع) (ع،اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) قطع کړے شوے ، پرېکړے شوے،غوځ شوے ، پرېکړے ، غوځ ، لکه : په مقطوع صورت.

**مقطوعاً** :-(م+ق+طو+عن) (ع ، تف) په قطع صورت ، په غوڅ صورت ، ټول ټال

**مقعد** :- (مق+عد) (ع ، اس ، مذ ، ج ــونه) د ناستې ځاے ، کونه ، سوپره ، دبر، د ډکو متیازو ځاے.

**مقعر** :- (م+قع+عر) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) قعر لرونکے ، ژور ، ډونګے ، غوچ ، کنده. ډوغول.

**مقفا** :- (مق+قف+فا) (و ــــ مقفي).

**مقفل** :- (م+قف+فل) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) قفل شوے ، جرنده شوے ، کلپ لګولے شوے ، قلف شوے.

**مقفیٰ** :- (م+قف+فا) (ع،صف) قافیې واله ، قافیه لرونکے ، هغه عبارت چې په جملو کښې ئې هم قافیه الفاظ راؤړلے شوي وي.مسجع.

**مقلب** :-(م+قل+لب) (ع ، اس ، مذ ، مو ــــ ه) مقلوب کوونکے ، اړولے کوونکے،الټه کوونکے ، بدلوونکے ، اپوټه کونکے.

**ــــ القلوب** :- (ــــ (بل)+ق+لو+ب) (ع ، تر،اس، مذ) د زړونو بدلوونکے ، زړونه اړولے کوونکے ،د زړونو په بل پېر کوونکے،خداے پاک.

**مقلد** :- (م+قل+لد) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) هغه څوک چې تقلید ئې کولے شي. هغه چې هار یا ځنځیر ئې په غاړه کړے وي.یا بله کومه غاړکۍ یا نخښه ئې په غاړه کښې پرته وي. لکه : ټائي یا مېډل یا نور.

**مقلد** :- (م+قل+لد) (ع ، اس ، مذ ، ج ــان/ ین) تقلیــد کــوونکے، بــل پسې تلونکے ، د بل پېروي کوونکے ، هغه مسلمان چې په څلورو امامانو کښې د یو پېروي کوونکے وي.

**مقلده** :- (م+قل+ل+دَ) (ع ، اس ، مو ، ج ــ دې) د ,,مقلد ،، تانیث دے.

**مقلوب** :-(مق+لو+ب) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــــ ه) اړولے شوے،الټه کړے شوے ، بدل کړے شوے ، په بل پېر کړے شوے .اړولے ، جار

وبستلي شوے

**ـــ مستوي** :- (ـــ(ب) + مس + ت + وي)(عف تر،اس،مذ) د علم بيان يو صنعت چې په کښې يولفظ (يا عبارت) دهر طرف نه يو شان لوستے شي.
لکه :- درد ، ايشيا .

**مقناطيس** :- (مق + نا + طي + س)(ع،اس ، مذ) يو قسم اوسپنه چې اوسپنې ځان ته راکاږي.اوسپنه په دغه اوسپنه مښلو سره مقناطيسي شي.اوس د بجلۍ په ذريعه اوسپنه مقناطيس کولے شي.

**برقي ـــ** :- (بر + قي ـــ) برقي کشش ، د بجلۍ ځان ته راښکنه.

**مقناطيسي** :- (م + ق + نا + طي + سي)(ع ، تر ، صف) مقناطيس سره تعلق لرونکے ، مقناطيس ته منسوب.مقناطيس واله.

**مقناطيسيت** :-(مق + نا + طي + سي + يت)(اس،مذ) دمقناطيس اثر يا کشش لرنه

**مقنع** :- (مق + نع)(اس ، مو ، ج ـــ عې / نې) هغه کپړه يا رومال چې زنانه ئې د ستر دپاره په مخ اچوي.د برقعې نرے رومال.د زنانؤ پړونے، څادر.

**مقنع** :- (مق + نع)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) تسلي بخش ، تسله ورکوونکے ، اطمينان بخښونکے.

**ـــ دليل** :- (ـــ د + لي + ل) قانع کوونکے دليل،تسلي بخش دليل ، اطمينان بخش دليل.

**مقنن** :- (م + قن + نن)(ع ،اس،مذ،ج ـــ ان / ين) قانون جوړوونکے،قانون ساز.

**مقننه** :- (م + قن + نِ + نَ)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ نې)د ,, مقنن ،، تانيث دے.

**مقننه** :- (م + قن + نِ + نَ)(اس ، مو، ج ـــ نې) قانون جوړونکے،(جماعت اسمبلي وغېره).

**ـــ مجلس** :- (ـــ مج + لس)(عف تر،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه جماعت کوم چې د يو ملک دپاره قانونونه جوړوي.قانون جوړونکے،جماعت.

**هيئت ـــ** :- (هي + ئت ـــ)(و ـــ مقننه جماعت).

**مقني** :- (مق + ني)(ع،اس، مذ،ج ـــ ان) د لختي، نالۍ يا د نهرکنستونکے.

**مقوا** :- (م + قو + وا).

**مقوي** :- (ـــ ددغه ـــ)(و ـــ مقوي).

**مقوله** :- (م + قو + ل)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ لې / ات) قول ، وينا ، وايه ، د کوم مشهور سړي د خولې وتلې خبره .داسې خبره يا جمله چې د چا د خولې وځي او مشهوره شي.خو دا د متل درجې ته نۀ رسي.

**مقوم** :- (م + قو + وم)(ع ،اس ،صف،مذ،مو ـــ ه) نېغوونکے، سمونکے، درستوونکے.

**مقومات** :- (م + قو + و + ما + ت) د ,, مقومه ،، جمع ده .

**مقوٰی** :- (م + قو + وا)(ع،اس ، مف ، مذ) قوي کړے شوے ، مضبوط کړے ، کلک کړے .په ټکولو سره کلک کړي کاغذونه ، هارډ بورډ.د هارډ بورډ نه جوړه شوې هغه غونډه او اوږده بکسه چې په کښې کاغذونه کښېښودلے شي.

**ـــ ساز** :-(ـــ سا + ز)(عف، تر،اس ، مذ ، ج ـــ ان / مو ـــ ه) هغه سړے چې په ټکولو سره سخت کاغذ جوړوي.گته جوړوونکے،کارډ بورډيا کارډ بورډ جوړوونکے. هغه سړے چې د کارډ بورډ يا د هارډ بورډ نه مختلف څيزونه جوړوي.

**ـــ غذا** :- (ـــ غ + ذا).

**ـــ خوراک** :- (ـــ خو + را + ک) هغه خوراک کوم چې بدن له قوت ورکوي. طاقت ورکونکے خوراک.

**مقوي** :- (م + قو + وي)(ع ، صف) قوت ورکوونکے،طاقت ورکوونکے.

**مقهوره** :- (مق + هو + ر)(ع،اس، مف ، مذ ، مو ـــ ه) قهر کړے شوے ، په چا چې قهر غصه شوې وي.د قهر لاندې راغلے،قهر وهلے.

**ـــ کېدل** :- د قهر يا غصې لاندې راتلل.

چې نۀ وي چې مقهور د زمانې شۍ
زړونه مه کړئ په قهر قهروليو (حافظ)

**مقۍ** :- (م + قۍ)(ع، صف) قې راوستونکے، قې آور، اُلټۍ راوستونکے، (څيز يا دارو).

**مقياس** :- (مق + يا + س)(ع ،اس ،مذ، ج ـــ ونه) پيمانه،اندازه، هغه اله چې ورسره د کوم څيز په حقله اندازه اخستے شي.

**ـــ الحرارت** :- (ـــ (سل) + ح + را + ر+ت)(ع تر،اس،مذ)د حرارت (گرمۍ) د معلومولو اله.تهرماميټر.

**ـــ اللبن** :- (ـــ(سل) ل + پن)(ع ، تر، اس ، مذ) هغه اله چې په پيو ، شودو کښې د اوبو گډون معلوموي.

**ـــ الماء** :- (ـــ(سل) + ما)(ع تر ، اس ، مذ) د اوبو اندازې اخستلو اله.

**ـــ المطر** :- (ـــ(سل) م + ط + ر)(ع ، تر،اس، مذ) د باران د اندازې د اخستلو اله.

**ـــ الهوا** :- (ـــ(سل) هـ + وا)(ع ، تر ، اس ، مذ) هغه اله چې د هوا د دباؤ د نمۍ او د طوفانونو او د موسمونو د بدلېدو اندازه لگولے شي.بېرومېټر.

**مقياسات** :- (مق + يا + سا + ت) د ,, مقياس ،، جمع ده.مقياسونه ، د زور او د کچ وغېره د معلومولو الې.

**د سطحې ـــ** :- (د ، سط + حې ـــ)(عپ ، تر، اس ، ج) د سطحې د زمکې وغېره د مخ د کچ پيمانې.

**د طول ـــ** :-(د ، طو + ل ـــ)(عپ ، تر ، اس ، ج) د اوږدوالي د ناپ کولو پيمانې.

**د وزن ـــ** :- (د ،و+ ز ن ـــ)(عپ، تر،اس، ج) د وزن پيمانې.

**مقياسوي** :- (مق + يا + س + وي)(عف ، صف) مقياس سره تعلق لرونکے ، مقياس (پيمانې) ته منسوب.

**مقيت** :- (م + قي + ي)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) قوت يا روزي ورکوونکے ، روزي رسان. (مع) د خدائے پاک صفتي نوم.

**مقيد** :- (م + قي + يد)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) په قيد کښې راغلے ، په قيد کښې،قيدي، پابند، اسير، مشروط ، د شرط نه لاندې.

**ـــ اوسېدل** :- پابند پاتې کېدل.

مقيد او مشغول اوسه
په دعــا او په درود (رحمان بابا)

**مقيدول** :- (م + قي + ي + د + ول)(مص) په قيد کښې راوستل ، قيد کول. بندي کول ، پابند کول ، پابندي لگول. شرط يا شرطونه لگول.

**مقيدېدل** :- (م + قي + ي + دې ، دل)(مص) قيدېدل ، په قيد کښې راتلل. بنديوان کېدل ، پابند کېدل ، پابندي لگېدل،مشروط کېدل ، شرط يا شرطونه ور لگېدل.

**مقيش** :- (م + قې + ش)(اس ، مذ) د سرو يا د سپينو زرو تارونه چې په کپړه باندې پرې کار کولے شي.

**ـــ دوزي** :- (ـــ دو + زي)(عف ، تر ، اس ، مو) په کپړه باندې د مقېش کار.

**مقيش** :- (م + قې + يش)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه کپړه چې د مقېش کار پرې شوے وي. هغه کپړه چې د سرو زرو او سپينو زرو وغېره تارونو کار پرې شوې وي.

**مقيم** :- (م + قي + م)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ) قيام کوونکے،کوم ځاے

ایسارېدونکے.د اړهتي سړے څوک چې سبزي وغیره نیلاموي.
اورنګزیب ، داراشکوه ، شاه جهان لاړل
پـاتې تـۀ به څـو مقیم په دا جهان ئې (حافظ)
ـــــ کېدل :- چېرته یو ځاے کښې ایسارېدل یا مېشتۀ کېدل.
مک :- (مک)(صف) نېغ ولاړ ، لک.
مکـابره :- (م + کـا + ب + ر)(ع ، اس ، مـو ، ج ـــ رې) کبر،غـرور، تکبـر، لویي.
ـــــ کول :- جګړه کول ، مجادله کول ، خصوصاً د ځان نه مشر یا افسر سره جګړه کول یا د ځان د بنودنې دپاره بحث کول.
مکاتب :- (م + کا + تب)(ع ، اس ، ج) د ,,مکتب،، جمع ده.مکتبې ، مدرسې ، سکولونه.
مکاتبات :- (م + کا + ت + بات) د ,,مکاتبه،، جمع ده.
مکاتبت :- (م + کا + ت + بت)(ع ، اس ، مذ) خط کتابت ، سره دچیټهو تبادله ـ مراسلت ، مکاتبه ، غلام لـه د مالک د طرفـه دا لیکلې ورکول.چې که هغه دومره روپۍ پیدا کړي او مالک ته ورکړي.نو ازاد به شي.
ـــــ کول :- خط کتابت کول،یو بل ته خطونه لیکل رالېږل.مراسلت.
مکاتیـب :- (م + کـا + تـي + ب)(ع ، اس ، مـذ) د ,,مکتـوب،، جمـع ده ـ مکتبونه،خطونه.
مکاتبـه :- (م + کـا + ت + ب)(ع ، اس ، مـو ، ج ـــ بې / ات) خط،چیټهۍ ، مراسله ، مکاتبت.
مکـار :- (م + ک + کـا + ر)(ع ، اس ، مـذ ، ج ـــ ان) مکر کـوونکے ، چالبـاز ، دوکه مار ، فریبي ، مکرجن ، چل ولي.
مکـارم :- (م + کـا + رم)(ع ، اس ، ج) د ,, مکرمـت،، جمـع ده ـ د بزرګـۍ مشرۍ کارونه ، د صفتوړ کارونه ، ښۀ اوصاف.
ـــــ اخلاق :-(ـــ (م) + اخ + لا + ق) لوړ اخلاق ، د صفتوړ اخلاق ، د صفتوړ خصلتونه.
مکاره :- (م + ک + کا + ر)(ا س، مو ، ج ـــ رې) د ,, مکار،، تانیث دے.
مکـاري :- (م + ک + کـا + ري)(عـف ، تـر، اس، مـو) مکر ژنـې، مکر کونـه ، دوکه ورکونه .
د تـــوحید لـه کلمه ئې بند شي ژبه
پرې غالب د مکار د یو مکاري وي (حافظ)
ـــــ کول :- مکر کول ، فریب کول ، دوکه ورکول چل ول کول.
مکاشفه :- (م + کا + ش + فَ)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ فې / ات) کشف کونـه ، د کشف په ذریعه د غیبو حال معلومونه یا معلومېدنه.راز ښکاره کونه.
مکافات :- (م + کا + فا + ت)(ع ، اس) سره برابرے ، بدل ، بدلـه ، غـرض ، سزا ، تاوان ، انتقام.
ـــــ موندل :-
ـــــ میندل :- سزا موندل ، د خپل عمل بدل موندل.
ـــــ ورکول :- بدل ورکول ، د عمل سزا ورکول.
داعمالو ـــــ :- (د ، اع + ما + لو ـــــ)(عـپ ، تـر، اس، ج) د عملونو بـدلې ، د عملونو سزاګانې.
مادي ـــــ :- (ما + دي ـــ) هغه بدلې یا عوضونه چې مادي څیزونو سره تعلق لري
مکافي :- (م + کا + في)(ع ، صف) برابر ، مساوي.
مکال :- (م + کا + ل)(اس ، مذ) د زرګرانو اوزار.
مکالمه :-(م + کا + ل + م)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ مې / ات) سره خبرې ګفتګو ، خبرې اترې ـ سوالونه جوابونه ، د ناټک یا ډرامې د کردارونو په خپلو کښې خبرې ، ډرامه.
ـــــ نویس :- (ـــ ن + وي + س)(عف ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) هغه لیکوال چې د ډرامې د کردارونو په خپلو کښې خبرې او سوال جواب لیکي.
ـــــ وئیل :- د ډرامې د کردارونو دپاره لیکلے شوې خبرې اترې.
(د مشق دپاره) وئیل.
مکان :- (م + کا + ن)(ع،اس،مذ،ج ـــ ونه / ات) ځاے ، کور،د اوسېدلو ځاے ، عمارت ، اباد ے ، مقام ، محل.
مالک ـــــ :- (ما + لک ـــــ)(عف ، تر،اس،مذ) د کور خاوند ، د کور مالک.
مکاني :- (م + کا + ني)(عپ ، تر ، صف) مکان سره تعلق لرونکے ، ځاے یا مکان ته منسوب.
قېد :- (ـــ قې + د)(عپ ، تر، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه قېد چې مکان سره تعلق لري.جائې بندي قېد ، په کوم خاص ځاے کښې بندي کونه.
مکبر :- (م + کب + بر)(ع ، اس ، صف ، مذ،مو ـــ ه) لویـونکے ، د تکبـر نعـره لګوونکے ، الله اکبر ویونکے.
ـــــ الصوت :- (ـــــ (رص) + صو + ت)(ع ، تر ، اس ، صف) اواز لویونکے ، اواز اوچتوونکے ، لکه : اله مکبر الصوت ، لاؤډ سپیکر.
ـــــ الصوت آله :- (ـــــ آ + ل).
ـــــ الصوت ماشین :- (ـــــ ما + شي + ن)(ع ، پ تر ، اس) هغـه الـه چې اواز اوچتوي. لاؤډ سپیکر.
مکتب :- (مک + تب)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / مکاتب) د لیکلـو لوسـتلو زدکړې ځاے ، مدرسه ، سکول ، درس ګاه ،خصوصاً په جماعت کښې د ماشومانو مدرسه.د کوم خاص خیال یا د عقیدې د خلقو ټولے.
ـــــ خیال :- (ـــــ خې + یا + ل)(عف ، تر ، اس ، مذ) د خاص خیال یا د عقیدې ډله یا ټولے.
حربیه ـــــ :- (حر + بي + يَ ـــ)(عف ، تر،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د جنګي تعلیم او زدکړې مدرسه.فوځي سکول.
مقدماتي ـــــ :- (م + قد + د + ما + تي ـــــ)(عپ ، تر،اس، مذ) د ابتـدائي تعلیم مکتب یا مدرسه.پرائمري مدرسه ، پرائمري ، سکول.
په ـــ کښېنول :- ماشوم په مکتب یا مدرسه کښې زدکړې دپاره داخلول.
مکتبه :- (مک + تب)(ع،اس،مو،ج ـ بې) دفتر،کتب خانه.
مکتبي :- (مـک + ت + بـي)(عـف ، صـف) ,,مکتـب،، سره تعلق لـرونکے ، ,,مکتب،، ته منسوب.
ـــــ انډیوال :- (ـــ ان + ډي + وا + ل)(عپ ، تر،اس ، مذ ،ج ـــ ان) د مدرسې ملګرے ، د سکول ملګرے ، کلاس فېلو،سبقي ، د سبق ملګرے.
منځنے ـــــ :- (مـن + ځ (دزه) + نے ـــــ)(عـپ تر،اس،مـذ) هغـه مکتـب یاسکول چې تر اتم جماعته پورې په کښې ښودنه کېږي،مډل سکول.
مکتحل :- (م + ک + ت + ح + ل)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) هغه سړے چې په سترګو کښې ئې رانجۀ اچولے وي.
مکتسب :- (مُک + ت + سب)(ع ، اس مف،مذ، مـو ـــــ ه) کسب کـړے شوے ، حاصل کړے شوے ، په محنت ګټلے شوے.
مکتسب :- (مـک + ت + سـب)(ع،اس، صـف،مذ، مـو ـــــ ه) اکتسـاب کوونکے ، کسب کوونکے ،حاصلوونکے ، فائده اخستونکے ، په محنت / مزدورۍ ګټه کونکے ، په خپل کار کسب پیسه پیدا کوونکے.
مکتشف :- (مـک + ت + شـف)(ع،اس،صـف ، مـذ ، مـو ـــــ ه) اکتشـاف کوونکے ، کشف سره معلوموونکے ، څرګندونکے ، ښکاره کوونکے.
مکتفي :- (مک + ت + في)(ع ، صف) کافي کېدونکے ، کفایت کوونکے ،

کافي ، پوره.

**مکتوب** :- (مک + تو + ب)(ع ، اس ، مذ ، ج ــ ونه / مکاتیب) لیکلے شوے ، په لیک کښې راغلے یا راوستے شوے. خط ، چیټۍ ، مراسله.

**ـــــ الیه** :- (ـــــ اي + لې + ه)(ع ، تر ، اس) هغه کس چا ته چې خط یا چیټۍ لیکلے شوې وي یا لیږلے شوې وي.

**ـــــ نویسي** :- (ـــــ ن + وي + سي) خطونه لیکنه ، د خطونو د لیکلو فن یا کار.

**مکتوباً** :- (مک + تو + بن)(ع ، تف) د خط په شکل کښې د لیک په صورت دخط په ذریعه.تحریري.

**مکتوم** :- (مک+ تو +م)(ع ،اس مف ، مذ ، مو ـــ ه) پټ، پوشیده ، پرده کښې ، د پردې تر شا.

ما خوشحال ته ستا د خولې اسرار مکشوف شو
که دا راز د چا له ستر گو نه مکتوم دے (خوشحال)

**مکث** :-(مک + ث)(ع ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) وخت تېرونه ، ډیل ، توقف ، التواء.

**ـــــ کول** :- ایسارېدل ، پاتې کېدل ، توقف کول دمه کول.

**مکخ** :- (م + کخ)(اس ، مذ) د یو بوټي نوم دے چې پاڼې او جرړې ئې ډېرې خوشبویه وي.

**مکدر** :- (م + کد + در)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) کدورت لرونکے ، کدورت واله ، خیري واله ، خیرن ، خفه ، ناراضه ، په زړۀ خبره لرونکے.

که هر شو د ځوانۍ عشق لرې خوشحاله
له زړو نه مکدر دي بنائسته (خوشحال)

**ـــــ کول** :- خیرنول ، خیره په څۀ کښې پیدا کول، میله کول . خفه کول ، غمژن کول ، خپ کول ، لکه : طبیعت ئې راله مکدر کړ.

**مکدر** :-(م + کَد + دِر)(ع ،اس، صف،مذ ،مو ــ ه) کدورت پیدا کوونکے ، خیرنوونکے ، خفگان پیدا کوونکے ، ناراضه کوونکے ، په زړۀ کښې خیرے پیدا کوونکے.

**مکذب** :- (م + کذ + ذب)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ــ ه) دروغژن کوونکے ، دروغژن گڼونکے.

**مکر** :- (م + کر)(ع ، اس ، مذ ،ج ــــ ونه) چل ، چال ، فریب ، دوکه ، چالاکي دروغ ، هغه حالت چې اصلي نۀ وي. په دروغه جوړ کړے شوے وي.

**ـــــ ژن** :- (ـــــ ژن)(عپ ، تر ،صف ، مذ ، مو ـــ ه) مکر کوونکے ، چل کوونکے ، دوکه باز ، فریبي ، ریاکار ، درغل.

**ـــــ دروه** :- (ـــــ د + رو + ه)(پ تر ، اس ، مذ) د دواړو لفظونو معنې یو شان دي دویم لفظ د تاکید دپاره راځي.مکر دروغ ، مکر فریب.

**ـــــ زنان** :-(ـــــ ز + نا + ن)(ف ، تر ،اس ، مذ) د ښځو مکر ، د ښځو بهانه گرې.

**ـــــ ژن** :- (ـــــ ژن)(و ـــ مکرجن).

پورې وت کلیم دخدا ے په عون او فرعون ډوب شۀ
دۀ ته مکر خیلې وبنا جوړ کړه فسادونه (حافظ)

**ـــــ کول** :- حیله کول ، چل کول ، درغلي کول ریاکاري کول ، دوکه کول.

**ـــ مکارت** :- (ـــ م + کا + ر + ت)(پ تر،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) مکارت د مکر د تاکید دپاره استعمالېږي.یعني مکر وغیره یا ډېر مکر.

که دې مکارت شته
خود به وویني خپل حال (خوشحال)

**د ـــــ ژړا** :- (د ـــــ ژ + ړا)(عپ ، تر، اس ،مو، ج ـــ گانې) هغه ژړا چې حقیقي نۀ وي.د دوکې یا د نمائش دپاره په دروغه ژړا کونه.

**مکرافون** :- (مک + را + فو + ن)(انگ ،اس ، مذ ،ج ـــ ونه) هغه اله چې اواز د ریکارډ کولو یا د نشر کولو دپاره رانیسي او د ریکارډ کولو یا نشر کولو لوے مشین ته ئې رسوي.مائیکروفون ، مائیک.

**مکران** :-(مک + را + ن)(اس ، مع) په بلوچستان کښې د یوې علاقې نوم دے.

**مکرانۍ** :- (مک + را + نۍ) د ,,مکرانے،، تانیث دے.

**مکرانے** :-(مک + را + نے)(ا س ، مذ ، ج ــ ني) د مکران د علاقې اوسېدونکے ، د مکران علاقې سره متعلق ، مکران ته منسوب.په مکران کښې جوړ شوے.

**مکرر** :- (م+ کر + ر + ر)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) په دویم کرت ، دوباره ، په دویم ځل .په مشاعره کښې د شاعر نه د خپل شعر دوباره وئیلو درخواست دپاره دا لفظ استعمالېږي.مکرر یعني دوباره وواپه.

د رحمان په باب چې وشو هغه وشو
مکرر به دا دفتر نشي هر گز (رحمان بابا)

**مکرراً** :- (م + کر + ر + ن)(ع ، تف) په تکرار سره ، دوباره ، په دویم ځل ، ډېر ځله ، بیا بیا.

**مکررات** :- (م + ک + ر + رات + ت)(ع،اس، ج) د ,,مکرره،، جمع ده .

**مکررول** :- (م + کر + ر + ر + ول)(مص) تکرار کول ، دوباره وئیل ، په دویم ځل وئیل ، دوباره کول.

**مکررېدل** :- (م + کر + رې + دل)(مص) تکرار کېدل ، دوباره کېدل ، په دویم ځل په عمل کښې راتلل.

**مکرم** :- (م + کر + رم)(ع ، اس ، مف ، مذ ، ج ـــ ه) عزت ورکړے شوے ، عزت واله ، عزتمند ، محترم ، معزز.

دنیا نۀ دي خپل دوستان مکرر کړي
که دې نن ونمانځي گانده به مهمان ئې (حافظ)

**مکرماً** :- ( م + کر + ر + من)(ع ، تف) محترماً ، د مهربانۍ په طور.

**مکرمت** :- (مک + ر + مت)(ع ، اس ، مذ) بزرگي،غېرتمندي،عظمت، مهرباني ، کرم فرمائي ، عنایت.

**مکرمه** :- (م+ کر + ر + م)(ع ، صف ، مو) د ,,مکرم،، تانیث دے . عزت واله،احترام واله.

**مکه** ـ :- (م + کْ کَ ـــ)(ع ، اس ، مع) د ,,مکې،، ښهر سره د عزت او احترام په طور دا لفظ راوستے شي.

**مکرم** :- (مک + رِم)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان ، مو ـــ ه) کرم کوونکے ، مهرباني کوونکے ، نواش یابخښنه کوونکے.

**ـــــ بنده** :- (ـــــ بن + ده)(عف ، تر ،صف، مذ) په بنده باندې کرم کوونکے ، د بنده مهربانه . عموماً به په خطونو یا درخواستونو کښې کوم مشر سړي یا افسر ته د خطاب په طور لیکلے شي.

**مکروب** :- (مک + رو + ب)(انگ ، اس ، ج ـــ ونه) جرثومه ، هغه ډېر وړکے نرے چینجے چې په نظر نۀ راځي.تش په خوردبین کښې لیدے شي .مرضونه وغېره پیدا کوي او خوروي.مېکروب.

**مکروبي** :- (مک + رو + بي)(انگ،ف،تر ، صف) مکروب سره تعلق لرونکے ، مکروب یا جرثومې ته منسوب ، مېکروبي ، جراثیمي.

**ـــ واکسین** :- (ـــ وا+ک +سي+ن)(انگ تر،اس،مذ ، ج ـ ونه) هغه وېکسین (رگ وهنه) چې د مکروبونو د وژلو دپاره وهلے شي.

**مکروبیولوجي** :-(مک+ رو + ب + یو+لو+ژي)(انگ،اس ، مو)د مکروبونو علم ، د جراثیمو په حقله علم.

**مکروتیے** :- (مک + رو + تیے)(اس ، مذ ، ج ـــ تیي) مکر کوونکے ، چل باز ،

درغل ، ریاکار ، په دروغه یو صورت جوړوونکے ، دوکه باز (د تصغیر شکل دے۔خو اصل ,,مکرے،، استعمالیږي)۔

**مکروه** :- (مک + رو + ه)(ع،اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې کرکه ترې پیداکیږي۔کرکه لرونکے ، کرکژن ، نفرت انګیز (فقه) هغه څیز یا کار چې د ځینو امامانو په نزد ناجائزه وي او د ځینو په نزد جائز وي۔

**مکروهات** :- (مک + رو + ها + ت)(ع ، اس،ج) د ,,مکروه،، جمع ده ـ د کرکې وړ څیزونه ، ناخوښه څیزونه ـ هغه څیزونه چې شرعاً خو ناجائزه نهٔ وي خو ځان ترې نه ژغورل پکار وي۔

**ـــــ تحریمه** :- (ـــ(ت) + تح + ري + م)(عف ، تر،اس، ج) د فقهې له رویه هغه مکروه کارونه یا څیزونه چې حرامو ته نژدې وي۔

**مکروهیت** :- (مک + رو + هي + یت)(ه،اس،مذ) کرکه ، ناخوښي۔

**مکړان** :- (مک + ړا + ن)(اس،مذ) هغه لړګے چې څرخ ګرځوي۔

**مکړک** :- (م + ک + ړک)(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د ګډو خاص غاړکۍ یا ګردن بند چې د لړګي نه جوړ شوے وي۔ د ټوپک اړتون ، پټه۔

**مکړن** :- (مک + ړن)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) ناروغه ګډه یا ګډه ، ناجوړه مېږ یا مېږه

**مکړن** :- (مک + ړن)(اس،مذ، مو ـــ ه) مه کړنه ، نهٔ کونه یعني د نهٔ کولو حکم

**مکړه** :- (مک + ړه)(فعل) د شي د امر فعل دے ، مه کوه۔

**مکړے** :- (مک + ړے)(اس ، مذ ، ج ـــــ ي) ګراري، غرغره ، د غونډ لرګي نه جوړه شوې هغه اله چې په مېنځ کښې ئې سورے وي او د کوهي نه پرې ډول ، بوقه یا بل کوم څیز را اوباسي۔

**مکړے** :- (مک + ړے)(اس ، مذ ، ج ــــ ي) د یو قسم ازغي / اغزي نوم دے۔ (ف ـــ ګوسفندخار) د اوبو د یو چنیجي نوم چې سور رنګ لري۔

**مکړے** :- (م + ک + ړے)(و ـــ مکړک)۔

**مکس** :- (مک + س)(انګ ، فعل) ګډول ، یو ځاے کول ، ګڼ څیزونو نه /څخه په یو ځاے کولو بل څیز جوړول ، ورګډېدل ، شاملېدل۔

**مکس** :- (مک + س)(انګ ، اس) ګډونه،ګډوډ کونه۔

**مکسچر** :- (مک +س + څ + ر)(انګ،تر، اس، مذ ، ج ــ ونه) ګډ کړي څیزونه ، د دواړوګانو ګډونه۔

**ـــــ جوړول** :- مختلف څیزونه سره ګډ وډ کول ، مختلف داروګان مېده کول او په اوبو کښې سره یو ځاے کول۔

**مکسر** :- (م + کس + سر)(ع ،اس ، مذ ،مو ـــ ه) مات کړے شوے ،مات شوے ،مات ،مکعب ، پلن والے ، اوږدوالے او غټوالے۔

**مکسر** :- (مک + سر)(انګ تر، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) یـــوه الـــه چـــې مختلف څیزونه سر ښهٔ یو ځاے کوي۔

**مکسور** :- (مک + سو + ر)(ع،اس ، مف ، مذ ، مو ـــ) مات شوے،مات کړے ، مات (ګرامر) هغه حرف چې د کسرې علامت لري ۔زېر لرونکے تورے ، (کره : زېر)۔

**مکشوف** :- (مک + شو + ف)(ع ،اس ، مف ، مذ ،مو ـــ ه) کشف شوے ، کشف کړے ،څرګند کړے شوے، ظاهر کړے شوے ، برښېره کړے شوے۔

**ـــــ العورت** :- (ـــ(فل) + عو + ر + ت)(ع، تر،صف) هغه چې پټ انداز ئې ښکاره وي۔د سرې یا ښځې د پټو اندامونو ښکارېدنه۔

**ـــــ کول** :- کشف کول ، د کشف په ذریعه ښکاره کول۔

**ـــــ کېدل** :- کشف کېدل ،د کشف په ذریعه ښکاره کېدل ،معلومېدل ، ظاهرېدل ، څرګندېدل۔

ماخوشحال ته ستا د خولې اسرار مکشوف شو

کــه دا راز د الـــه سترګـــو نه مکتـــوم دے (خوشحال)

**مکشوفول** :- (و ـــ مکشوف کول)۔

**مکشوفېدل** :- (و ـــــ مکشوف کېدل)۔

**مکعب** :- (م + کع + ب)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه څیز چې اتهٔ ګوټونه لري ۔او د هر طرف د بازو اوږدوالے ئې برابر وي۔ یعني اوږدوالے ، پلنوالے ۔او اوچت والے ئې یو برابر وي ۔هغه عدد کوم چې د یو عدد درې ځله ضرب کولو نه پس حاصل شي۔لکه ۲×۲× ۲ نه چې ۸ راځي۔دغه لنډ ۲[۳] هم لیکلے شي۔په انګرېزۍ کښې ورته ,,کیوب،، وئیلے شي۔د حجم پیمانه

**ـــــ فټ /انچ/میټر/سنټي میټر** :- (انګ تر،اس،مذ) د حجم پیمانه۔

**مکفن** :- (م + کف + فن)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) کفن کړے شوے ، په کفن اچولے شوے ، په کفن کښې نغښتے۔

**مکفوف** :- (مک + فو + ف)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) شلېدلے قمیص ، شلېدلې کرته ۔ قمیص (عروض) د اووۀ حرفونو نه جوړ شوے لفظ چې اخري حرف ئې غورځېدلے وي۔ لکه : مفاعلین په ځاے مفاعیل۔

**مکفول** :- (مک + فو + ل)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) په کفالت کښې ورکړے شوے ، د چا د ضمانت په حفاظت کښې ورکړے شوے ۔په نګرانۍ کښې یا ذمه وارۍ کښې۔

**مکلف** :- (م + کل + لف)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) د تکلف نه ډک ، تکلف واله ، ښکلا ورکړے شوے ، زینت واله ـ تکلیف ورکړے شوے۔ پابند ، ځوانۍ یا بلوغت ته رسېدلے ، چې ددې نه پس هغه د دیني امورو د ادا کولو پابند ګرځي۔

**مکلفېدل** :- (م + ک + ل + فې + د + ل)(و ـــ مکلف ګرځېدل)۔

**مکلف** :- (م + کل + لف)(ع + اس + صف ،مذ ، مو ـــ ه) مکلف کوونکے، په تکلیف کښې اچوونکے ، عموماً د مېلمستیا دپاره د بللو د رقعو (دعوت نامو) د لاندې خپل نوم سره ,,المکلف،، لیکلے شي ۔یعني د راتلو تکلیف ورکوونکے۔د احکامو پابند کوونکے۔

**مکلل** :- (م + کل + لل)(ع ، اس ، صف، مذ ،مو ـــ ه) تاج په سر ایښے، ټوپولے ،پرېښودلے ، زلقولے ، پرقولے۔

همېشه به ئې په غم کښې سرګردان دے

کـــه افسر لکـــه اسمان کـــړې مکلل (شیدا)

**ـــــ کول** :- ځلاند کول ، زلق ورکول ، پرېښول۔

د دستار د رتبې بــه نـهٔ رسېږي

که په لعلو مکلل کړې پائیزېږې (خوشحال)

**مکمل** :- (م + کم + مل)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) تکمیل ته رسېدلے، پوره کړے شوے ، پوره ، کامل ، تمام۔ ترسره شوے۔

**ـــــ کول** :- پوره کول،تکمیل ته رسول ، سرته رسول ، ختمول۔

**مکملول** :- (م + کم + م + ل + ول)(و ـــ مکمل کول)۔

**ممکنت** :- (م + مک + نت)(ع ، اس ، مذ ) طاقت،قدرت، زور، توانائي ، تونګري ، دولت او ثروت۔

**مکنډ** :- (م + کن + ډ)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) مرکنډ ،مرۍ ، څټ۔

**مکنډے** :- (م + کن + ډے)(و ـــ مکنډ)۔

**مکنه** :- (مک + نه)(اس،مو، ج ـــ ړې) برقع۔

**مکنون** :- (م + ک + نو + ن)(ع ،اس، مف،مذ، مو ـــ ه) پټ کړے شوے ، پټ ، پنهان ، راز۔

**ـــــ خاطر** :- (ـــ(ن) + خا + طر)(عف ، تر ، اس ، مذ) د زړۀ خبره ، پټه خبره ، د زړۀ راز۔

**در ـــــ** :- (در + ر ـــــ) (عف، تر، اس) پته ساتلې شوې مرغلره، ډېر قیمتي مرغلره، بېش بها مرغلره.

**مکنه** :- (مک + ن) (اس، مو، ج ـــــ نې) برقع، ځادرۍ.

**مکنه** :- (م + ک + ن) (صف) زېږه، د خاورې صفت دې. یعني مکنه خاوره، زېږه خاوره.

**مکوه** :- (م + کو) (و ـــــ مکۍ).

**مکوټ** :- (م + کو + ټ) (صف) وریت کړې، چې ډېر وریت شي (محاورتاً) سوځولې.

**ـــــ کول** :- وریتول، ورتول، سوځول.

**ـــــ کېدل** :- ورتېدل، سوځېدل.

**مکوړي** :- (م + کو + ړي) (اس، مع) د کرک په ضلع کښې د یوې علاقې نوم. ددغې علاقې خلق.

**مکه** :- (م + ک + که) (اس، مع) عربستان (سعودي) کښې مشهور ښهر، چې د مسلمانانو دیني مرکز بیت الله شریف هم په کښې دې او حضور پاک صلعم هلته پېدا شوې وو ځکه تعظیماً ورته کله معظمه وئیلې شي.

**ـــــ مدینه جارو کول** :- محاورتاً: په تالي کښې پاتې شوني خوراک ځیز خوړل او رکیبۍ صفا کول. (غرض د لوښي د صفا کولو د ثواب دې).

**ـــــ معظمه** :- (ـــــ م + عظ + ظ + م) (و ـــــ مکه).

**مکي** :- (مک + کي) (عف صف) مکې سره تعلق لرونکې، مکې ته منسوب. د مکې معظمې اوسېدونکې.

**مکۍ** :- (م + کۍ) (اس، جم) اردو ژبه کښې „جوار"، ته وئیلې شي. ځیني خلق (لکه هندکیان) روټۍ / چپاتۍ ته وائي. د جوارو ډوډۍ ته هم وئیلې شي.

**مکیال** :- (مک + یا + ل) (ع، اس، مذ، ج ـــــ ونه) کاسه، د غلې دانې، د ناپ تول پیمانه.

**مکېدن** :- (م + کې + دن) (ف، مص) زبېښل.

خوند د شهدو د شکرو راته هېڅ دې

ځو مې یاد د هغو شونډو مکېدن دې (خوشحال)

**مکېز** :- (م + کې + ز) (اس، مذ، ج ـــــ ونه) ناز، ادا، عشوه.

**ـــــ کول** :- نازل کول، ادا کول، نخره کول.

**ـــــ گره** :- (ـــــ گ + ر) (پ تر، اس، مو، ج ـــــ رې) مکېز کوونکې، ناز ادا کوونکې، عشوه گره.

**مکېزۍ** :- (م + کې + ز + ۍ) (پ تر، صف) مکېز گره، ناز و ادا کوونکې، پېغله یا جینۍ.

**مکیف** :- (م + ک + ئ + یف) (ع، صف، مذ، مو ـــــ ه) کیف ورکوونکې، کیف اور، نشه پیدا کوونکې، نشه اور.

**مکیفات** :- (م + ک + ي + فا + ت) (ع، اس، ج) د „مکیفه"، جمع ده. نشه اور ځیزونه، نشه پېدا کوونکي ځیزونه.

**مکین** :- (م + کي + ن) (ع، اس، مذ، ج ـــــ ان) په مکان کښې اوسېدونکې، په کور کښې استوگن.

**مکېنزم** :- (م + کې + ن + ز + م) (انگ، اس، مذ) مشیني جوړښت.

**مکېنکس** :- (م + کې + ن + نک + س) (انگ، اس، مذ) د مشـــنونو د کـــار علم.

**مگ** :- (م + گ) (اس، مذ، ج ـــــ ونه) هغه سورې چې د کوټې په چت کښې د نغري دپاسه د لوگي د وتلو دپاره جوړولې شي.

**مگ** :- (م + گ) (انگ، اس، مذ، ج ـــــ ونه) یو قسم گلاس چې د تام چینۍ نه / ځخه جوړ شوې وي او لاستې لري.

**مگ** :- (مگ) (و ـــــ مږ).

**مگازین** :- (م + گا + زي + ن) (و ـــــ مگزین).

**مگر** :- (م + گر) (حرف) د استثنا توری، ډېرې معنې ورکوي. لیکن، ولې، خو سېوا، سېوا ددې نه / ځخه، غالباً شاید، گوندې.

تهٔ چې معطل ناست ئې تعطیل نخښه دقنوط ده

طمـــع مگر نـــهٔ لـــرې د دوست لـــه استقابله (حافظ)

**مگر** :- (م + گر) (ف، حرف) د استثناء توری دې. بجز، بغېر د، ما سوا، شاید. لکه: مگر تا زما نوم نهٔ دې اورېدلې.

**مگر** :- (م + گ + ر) (هـ + اس، مع) د فصلي کال د یوې میاشتې نوم. (هـ ـــــ مگهر).

**د ـــــ خان** :- (د ـــــ خا + ن) د مگر د میاشتې خان، په دې میاشت کښې د گنو گانې گرځي. محاورتاً: د گوړې په خرڅولو سره مال دولت جېب له راتلل، د گوړې خان. لکه د تماکو خان چې وئیلې شي.

**مگزین** :- (مگ + زي + ن) (انگ، اس، مذ، ج ـــــ ونه) رساله، مجله، دټوپک، تماچې د کارتوسونو خانه جاجر، اسلحه خانه.

**عسکري ـــــ** :- (عس + ک + ري ـــــ) (انگ + ف + تر، اس، مذ) فوجي اسلحه خانه.

**مگس** :- (م + گس) (ف، اس، مذ) مچ، فارسۍ کښې مچ ته وئیلې شي، د شهدو مچۍ.

یـــاران اخوان دي که پسران دي

مگس کل واړهٔ د خواږهٔ خوان دي (سعید ختک)

**ـــــ گیر** :- (ـــــ گي + ر) (ف، تر، اس، مذ) د جولاجاله. هغه کاغذ چې سلېښ او خواږهٔ پرې لگېدلي وي. چې مچان پرې کښېني نو بیا نشي الوتې.

**مگسي** :- (م + گ + سي) (اس، صف) د مگس د رنگ، تور بخن مگس سره تعلق لرونکې. هغه اس چې ټول بدن ئې سپین وي خو په ټول وجود ئې سرهٔ ټاکي وي. لکۍ او د ځټ ویښتهٔ ئې تور وي. د بلوچو یوه قبیله.

**مگن** :- (م + گ + ن) (هـ + صف، مذ، مو ـــــ ه) خوشحاله، په چرت کښې، په سرور کښې، مسرور، حېران، په سوچ کښې تلې.

**مگنه** :- (م + گ + ن) (اس، مو، ج ـــــ نې) دریچه، کړکۍ.

**مگهر** :- (م + گ + هـ + ر) (و ـــــ موځې).

**مل** :- (مل) (اس، مذ) ملگرې، په لاره یو ځای تونکې. رفیق، دوست، امداد کوونکې.

چـــې مولا درسره مل نهٔ وي رحمانه

که لښکرې درسره وي یک تنها ئې (رحمان بابا)

**مل** :- (م + ل) (و ـــــ ملواح).

**مل** :- (مُل) (ف، اس، هـ، جم) شراب، مې، باده.

ما چې ستا د شونډو مې سره مزه کړل

مستغني شوم د جهان لـــه واړو مُلو (خوشحال)

**مل** :- (مِل) (انگ، اس، مذ، ج ـــــ ونه) کارخانه، لویه کارخانه.

**ملا** :- (م + لا) (ع، صف) ښکاره، ځرگند، ظاهر.

ځیني چـــارې لـــرې پټې

ځیني چارې لرې ملا دي (خوشحال)

**ـــــ اوخلا** :- (ـــــ او + خ + لا) (عپ، تر، تف) په ښکاره او په پټه.

**بر ـــــ** :- (ب + ر ـــــ) (عف، تر، تف) په ښکاره، په ځرگنده.

**ملا** :- (م + لا) (ع، اس، مذ) تولې، نېک، شریف خلق، سرداران د لویو او اشرافو خلقو ټولې.

**ملا** :- (م+لا)(ع ، مذ ، اسم صف) دغه اصلاً ملاءُ دے چې عربي کښې المَلاَءُ ليکلے شي۔ جمع ئې املاء ده۔ د الملاء + الاعلیٰ برخه ده۔ معنیٰ ئې ده: د شريفو يا اشرافو خلقو ډله يا جماعت۔ فرشتګان ، پاک خلق ، ښکاره ، څرګند ، مشوره يا مشورت (فرهنګ جديد عربي فارس)،، مُلا ،، يا ،،مولا،، د همدغه ملاء نه جوړ شوے دے او لکه چې خلق وائي مُلا / مولاد مولیٰ څخه جوړ دے۔ هغه خبره غلطه ده۔

**مُلا** :- (م+لا)(پښتو، اسم صف ، مذ)(و ــــ ملا) مُلا يا مولانه عربي دے نۀ فارسي بلکې په دغه شکل کښې دا فقط پښتو لغت دے۔ البته ،،ل،، په شد سره فارسي هم دے او اردو هم ۔ مُلا يا مولا او يا مُلا ، اسلام کښېچېرته داسې د مذهبي عهدې يا مقام نوم نۀ دے پاتې شوے چې ګني تعلق ئې د اوسني دغه لفظ سره جوړ کړے شي۔ هر کله چې عام مسلمانان دين نه لرې شول او دليک لوست او عمل په ذريعه ئې دين سره رابطه اونۀ ساتله نو د ټولنې هغه ډله پاکستان چې له هره لحاظ ئې دين اسلام سره رابطه بحال اوساتله او د ژوند په هر ډګر کښې ئې د اسلام تعليماتو نه رهنمائي واخسته نو دغه ډله په مُلا / مولا يا ملا ياده شوه۔ د مُلا جمع پښتو کښې ملايان دي۔ ديني عالم ،د جماعت امام، پاک باز،د شرعې پابند ، ډېر ليکوال او اديب ، استاذ ، پوهـ۔

**ــــ بهادر** :- (ــــ ب + ها + در) د يوې قيصې يو غړے ، چې پېريان ئې په خپل قابو کښې راوستي وو او په دغه وجه به هر وخت په اودس کښې اوسېدلو۔ محاورتاً هغه چاته وئيلے شي۔ چې ددغه دواړو ټکو صفات په کښې ښکاره شي۔ دا ،، ملا بادر،، وئيلے شي پښتو کښې همدغه شان هغه (الف) واله (هـ) وېنا کښې پرېږدي۔ مهال نه مال، بهادر نه بادر او نهالۍ نه نالۍ او چې (هـ) وي نو هغه بيا وېنا کښې (الف) وائي لکه (هور) نه (اور) (زهمن) نه (زامن) (هزغي نه هغزي) (ازغي نه اغزي) او نور۔

**د ــــ په شان اوس کښې اوسېدل** :- ډېر زيات احتياط کول۔ چې څۀ کار يا خبره ترې داسې ونۀ شي چې بل ته پرې د اعتراض (يا بد رسه ولو) موقع په لاس ورشي۔ پرهېزګاري (دا محاوره د يوې قيصې نه اخستې يو مُلا بهادر پيريان په قبضه کښې راوستي وو او هر وخت به په اودس کښې اوسېدلو۔ چې دا جنات پرې غالبه نشي۔ يوه ورځ بې اودسې کښې پېريانو راګېر کړو او په چت کښې د شهتير او د ستنې د سرې په مېنځ کښې ئې ونښلولو)۔

**ــــ بانګ مال** :- (ــــ با + ن + ګ + ما + ل)۔

**ــــــــ وخت** :- (ــــ و + خ + ت)(پ تر ، اس ، ظر) سحر وختې ، د سحر هغه وخت چې بانګ وئيلے شي۔ ځيني خلق ،، بانګ ملا ،، او ځيني ملا بانګ مال وائي۔ صحيح املا ئې داده۔ بانګ مهال۔

**ــــ توب** :- (ــــ تو + ب)(پ تر ، اس ، مذ) ملائي يا د ملا کار۔ علميت ، علم لرنه۔

**ــــ ټارے** :- (ــــ ټا + رے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ري) هغه سړے چې عالم نۀ وي خو د ځان نه ئې ملا جوړ کړے وي۔ ملا ته د تحقير په طور وئيلے شي۔

**ــــ چرچک** :- (ــــ چر + جک) د يو مارغۀ نوم دے۔ سور نارنجي برګ اوږده مښوکه او د مښوکې هومره په سر څونډے يا چوټۍ۔ هُد هُد۔

**ــــ چرګک** :- (ــــ چر + ګک)(و ــــ ملا چرچک)۔

**ــــ کېدل** :- عالم کېدل۔

**ــــ ګيرت** :- (ــــ ګي + رت)(و ــــ ملاګيري)۔

**ــــ ګيري** :- (ــــ ګي + ري)(عف ، تر،اس،مو) مُلا توب ، ملائي ، د جماعت امامتي۔

**مياں ــــ** :- (م + يا + ں ــــ)(پ تر) دواړه په ټولنې کښې د غېرت او قدر ور وګڼړي دي۔ ځکه هغه کسان چې په اولس کښې قدر او عزت دي۔ خصوصاً ديني او روحاني مشران ۔ هر کله چې معاشره کښې دغه دوه کسان مُلا او ميان په اقتصادي توګه لاندې شول نو خلقو به بيا خېر خېرات او صدقات هم دغو ته ورکول تر دې حده چې د خېر خېرات وغېره لکه چې مصرف هډو ميان مُلا اوګرځېدل۔ دا اصلاً د اسلامي معاشرې د تباهۍ وړومبې نخښان او ددغو لويو رتبو او مقاماتو تنزل وو/دے۔

**ځان ــــ کول** :- د ځان نه ملا جوړول ، ځان ته عالم وئيل ، يا ځان خلقو ته عالم څرګندول۔

> نــادیده پــه نـادانۍ څــۀ بلا کا
> الف بې ئې لوستي نۀ دي ځان ملا کا (خوشحال)

**ملا** :- (مْ + لا) (اس ، مو ، ج ــ ګانې / وې) شا ، چې اردو کښې ورته کمر وئيلے شي۔ د بدن ، څټ نه ښکته ولو نه ډونګې دغه برخه بره ملا او لاندې حصه نرۍ ملا۔

**ــــ بند** :- (ــــ بن + د)(فپ ، تر،اس، مذ ، ج ــــ ونه) کمر بند۔

**ــــ پاړے** :- (ــــ پا + ړے)(پ تر ،اس،مذ) د هلکانو د يوې لوبې نوم دے

**ــــ تړ** :- (ــــ تړ)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) خپل ،خپلوان ، ملګري ، اولاد ، دغو ته محاوره کښې ملاتړ وئيلے شي ۔چې بنده حېثيت پرې مضبوط وي۔ تکيه ، اعانتيان يا امداديان ، اعانتي يا امدادي۔ معاون ، حمايتي وغېره۔

**ــــ تړل** :- تيارېدل ، څۀ کار ته اماده کېدل ، کمربسته کېدل ،همت کول، حوصله کول۔

> زغره واغونده ملا وتړه په جنګ
> دغـــه پسه معرکه کوه د ننګ (رحمان بابا)

**ــ تړل ،په چا** :- په چا باندې تکيه کول،د چا د امداد طمع لرل۔

**ــــ تړلے** :- (ــــ ت + ړ + لے)(پ تر ، صف ، مذ ، ج ــــ لي) کمر بسته ، کوم کار يا مهم ته اماده او تيار۔

> او طاعت وته ولاړ وي
> همېشه تـړلې مــلا (رحمان بابا)

**ــــ تړونے** :- (ــــ ت + ړو + نے) کمر بند، ملا بند ، څادرګے ، پېټې پټکے ، رسۍ

**ــــ ټېول ،دچا** :- شاباسے ورکول ، د کوم کار دپاره اماده کول ، همت افزائي کول ، حوصله افزائي کول۔ مقابلې يا جنګ ته تيارول۔

**ــــ ټېټول ،چاته** :- چاته ټيټېدل ،د چا تعظيم کول ، چاته ځان ښکته کول ، شکست يا ماتې منل۔

**ــــ ټينګول ،دچا** :- همت ور زياتول،حوصله ورکول،امداد کول ، ملګرتيا کول

**ــــ خم کول** :- ملا ټيټول ، تعظيم کول۔

> هغه ملا مې چې په هوډ سره لوے غر وو
> پــه ناکام کـــړه و مغـــل وته خمه زما (خوشحال)

**ــــ غبروړبدل** :- ملا کړېدل،ملا کونتي کېدل۔

> چې پيرۍ مې ربره سپينه کړه ملا غبرګه
> بويـــه قـد د سروې قد عصا تر تخرګه (حميد)

**ــــ لګول ،چالره** :- راپرځول ، د کشتۍ په مقابله کښې شکست ورکول۔ د کشتۍ قاعده ده چې د کوم پهلوان ملا په زمکه ولګي هغه مقابله بېلې ، شکست ورکول۔

**ــــ لګېدل** :- په کشتۍ کښې مقابله بېلل،ماتې کول، شکست خوړل۔

**ــــ ماتول دچا** :- طاقت ببخي ختمول ، چا ته لوے نقصان يا تاوان رسول۔

د چا نه د هغه ملاتړ ملګرے جدا کول یا مړ کول.

**ـــ ماتوونکے** :- (ـــ ما +ت+وو+ن + کے) (پ تر ، اس،مذ ، ج ـــ کي) لوے نقصان ، غټ کار ، دروند کار لوے تاوان ، او نور.

**ـــ ماتے** :- (ـــ ما + تے) (پ تر ، صف) هغه چې ملا ئې ماته وي ، په کار کښې سست ، د کار غل ، د ټوپک تماچې هغه قسم چې د کارتوسونو د اچولو دپاره رابرغولے شي. د ګرګرې تماچه ، ملاماتے چرئيځ.

**ـــ ماتېدل** :- د ملا هډوکے ماتېدل ، راکړوپېدل .محاورتاً : بېخي کمزورے کېدل زور نۀ پاتې کېدل. د چا نه د هغوي ملاتړ ملګرے جدا کېدل یا مړ کېدل . په کوم کار کښې داسې ډېر خفګان مونډل چې د نور کار کولو جوګه پاتې شي.

په محبت په مشقت ملا ماته نۀ وه
نۀ حرامه همیانۍ د چـــا تر ملا (رحمان بابا)

**ـــ ماتېدل څۀ کارته** :- کار ته ډېره نۀ لګېدل ،کار ته نۀ اماده کېدل. کار ته زړۀ نۀ کېدل ،بدن کښې سستي راتلل او نور.

**ـــ نېغول** :-

**ـــ سمول** :- د ارام دپاره لړ شان سملاستل ، لړ شان ارام کول. لړ ه شان دمه کول، (په ملاستې).

**تر ـــ** :- په ملا پورې ، په ملا په خپل ځاے او شان ، دا محاوره ده مطلب تیار حالت دے.

په محنت په مشقت ملا ماته نۀ ده
نـۀ حـرامه همیانۍ د چا تر ملا (رحمان بابا)

**ـــ کښې سک کېدل** :- سک د ملا یو تکلیف یا بیماري ده دا عموماً په نرۍ ملا کښې وي او د برېښ یا د درد د څړیکې په صورت کښې محسوسېږي. دغه څړیکه یا برېښ د ملا په یوه خاص زاویه را اوچت شي او ډېر تریخ ، تېز او تېرۀ وي.

**د ـــ تیر** :- (د ـــ تي + ر) (پ تر ، اس ، مذ) د ملا د مېنځ عمودي هډوکے چې د وړو وړو هډوکو نه جوړ دے. د یو جسم یا نظام هغه برخه چې دغه ټول جسم یا نظام پرې ولاړ وي.

**د ـــ درد** :- (د ـــ در + د) (پ تر،اس،مذ، ج ـــ ونه) د کمر درد.

**ملاټے** :- (مُ + لا + ټے) (پ تر ، اس مذ ، ج ـــ ټي) د ،، ملا ،، تصغیر دے. وړوکے ملا، حقارتاً بې علمه ، کم علمه مُلا.

**ملاح** :-(مل + لا + ح) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) کشتۍ چلوونکے ، کشتي وان ، ماڼګے

د بېړۍ په ډوبېدو چې رب راضي شي
بیـــا ملاح د زړونو کلـه هلته کار کا (رحمان بابا)

**ملاحت** :- (م + لا + حت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) نمکیني ، مالګیني ، رنګ ، سکنوالے ، ښائست ، ښائسته والے.

ملاحت وو نـزاکت وو لطافت وو
د خوشحال دلبره سر تا پا ښائست (خوشحال)

**ملاحده** :- (م + لا + ح د) (ع ، اس ، ج) د ،، ملحد ،، جمع ده. ملحدان، بې دینه خلق.

**مُلاحظات** :- (م + لا + ح + ظا + ت) د ،، ملاحظه ،، جمع ده. ملاحظې.

**ملاحظه** :- (م + لا + ح + ظه) (ع ، اس ، ج ـــ ظې / ات) معائینـــه ، پـــه غورسره کتنه ،مشاهده. لحاظ ، مروت.

**ـــ کول** :- په غور سره کتل ، معائنه کول ، کتل ، لحاظ کول ، خیال ساتل ، طرفدارے کول.

**مخ ـــ** :- (مخ ـــ) (عپ ، تر ، اس ، مو ج ـــ ظې) لحاظ ، مروت ، رعایت ، طرفداري (پښتو کښې عموماً ح هوار لوستے شي او ددې لفظ تلفظ مولاژه هم کولے شي).

**ملاحي** :- (مل + لا + حي) (عف تر ، اس ، مو) د ملاح کار یا پېشه. ماڼګي توب.

**ـــ کول** :- د ملاح کار کول ، ماڼګي توب کول کښتۍ یا جهاز چلول.

**ملاخ** :- (م + لا + خ) (و ـــ ملاق).

**ملارګے** :- (م + لا + ر + ګے) (و ـــ ملا خوږے) ، د ملا درد ، سست پست ، کاهل ، بېکار.

**ملاریا** :- (م + لا + ري + یا) (انګ ، اس ، مو) ملېریا ، موسمي تبه ، د مني تبه.

**ـــ کېدل** :- د ملېریا تبه کېدل ، د مني تبه کېدل.

**د ـــ ماشے** :- (د ـــ ما + شے) (انګ ،پ ،تر،اس،مذ ، ج ـــ شي) په ماشو کښې هغه قسم ماشے کوم چې د ملېریا باعث ګرځي.

**ملازم** :- (م + لا + زم) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ین) هغه نوکر یا خادم چې په تنخواه اوساتلے شي. دغه تنخواه نغدې هم کېدے شي او د جنس په صورت کښې هم. د تنخواه موده میاشت هم کېدے شي او فصل هم. ځینې خلق زمیداري یا څاروو ساتلو دپاره نوکر ساتي ددغې کسانو فصلانه وي. خو عموماً په دفترونو ، ادارو او کارخانو کښې تنخواه دارو نوکرانو ته ملازمان یا ملازمین وئیلے شي. د یو ورځې ملازم ته دیاړي مار یا مزدور وئیلے شي.

**ـــ کول** :- نوکر کول ، نوکري ورکول. په ملازمت اخستل یا ورکول. په ملازمت نیول یا ورکول.

**ـــ کېدل** :- نوکر کېدل ، نوکري اختیارول ، ملازمت اختیارول.

**ملازمت** :- (م + لا + ز + مت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) تـــل چـــا ســـره اوسېدل. (عام خلق ،، ز ،، زېر سره وائي) نوکري ، خدمتګذاري.

**ـــ پېشه** :- (ـــ پې + شَ) (عف تر ، صف) هغه سړے چې پېشه ئې نوکري کول وي. نوکر پېشه ، تنخواه دار.

**ـــ کول** :- نوکري کول.

**عسکري ـــ** :- (عس + ک + ري ـــ).

**فوجي ـــ** :- (فو + جي ـــ) د فوج ملازمت ، د فوج نوکري.

**ملازمه** :- (م + لا + ز + م) (اس ، مو ، ج ـــ مې / نې) د ،، ملازم ،، تانیث دے.

**ملاست** :- (م + لا + س + ت) (فعل) د ،، ملاستل ،، مصدر نه د حال صیغه څملاستل ، پروت ، غځېدلے اوږد شوے. اوده.

**ـــ زمرے** :- هغه زمرے (شېر) چې په ځاے پروت وي اوچېرته د تللو کوښښ یا ګرځېدل نۀ کوي .محاورتاً : بېکاره سړے،لاس او پښې نۀ خوځوونکے سړے ، اصلاً ددې متل نه اخستے شوے دے چې د ملاست زمري نه ګرځنده ګیدړ ښۀ وي.

**ملاستل** :- (م + لا + س + تل) (مص) نیم مستعمله مصدر ، ځینې صیغې ترې جوړېږي. نورې صیغې د څملاستل نه جوړولے شي.

**ملاستنه** :- (م + لا + س + ت + ن) (و ـــ څملاستنه).

**ملاستو** :- (م + لا + س + تو) (اس ، مذ) ملا تړونے ، کمر بند.

**ملاستوے** :- (م + لا + س + تو + وے) (اس ، مذ ، ج ـــ وي) پټکے ، سپک پټکے ، دستارچه.

**ملاسته** :- (م + لا + س + ت) د ،، ملاست ،، تانیث دے.

**دچا ـــ غوانۀ پاڅول** :- (محاوره) چا ته معمولي شان تکلیف یا نقصان هم نۀ رسول. په چا هېڅ غم غرض نۀ کول.

**ملاشینے** :- (م + لا + شي + نے) (پ تر ، صف ، مذ) ملا یا کمر سره متعلق ،

کمري ، سست ، کاهل ، بې کاره.

**ملاطفت** :- (م + لا + ط + فت) (ع،اس،مذ ،ج ــ ونه) لطف کونه، مهرباني ، عنايت ، نېکي.

**ـــــ کول** :- نرمي کول ، مهرباني کول ، د لطف نه کار اخيستل.

**ملاعب** :- (م + لا + عب) (ع ، اس ، ج) د ,, ملعب ،، جمع ده.

**ملاعبت** :- (م + لا + ع + بت) (ع ، اس ، مذ) په خپلو کښې لوبې ټوقې وشتې کونه ، شوخي.

**ملاعبه** :- (م + لا + ع + به) (و ـ ملاعبت) ټوقه ، وشته ، شوخي.

**ملاغاښې** :- (م + لا + غا + ښې) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ښې) د ملا د هډوکي يو بند.

**ملاغه** :- (م + لا + غ) (اس،مو ،ج ـ غې) لويه غټه څمڅې ، لاستوره.

**ملاق** :- (م + لا + ق) (ع ، اس ، مذ) بازيگره ، سر په زمکه کښېښودل او کانټې / چاټې اړونه ـ لاندې پاس تاوېدل ـ دغه په زمکه د سر کښېښودلو ، اخوا دېخوا ترې په زمکه لاسونه اېښودے هم شي او نهٔ هم. بيا نور بدن شاکړے په وړاندې ور غورځول، سر په زمکه که د اېښودلو په ځاے هوا کښې دغه شان تاؤ شي او نېغ په زمکه اودرېږي ، داسې هم کېدے شي او هوائي بازيگره ورته وئيلے شي.ځينې لوبغاړي څو ځله په يو ځاے دغسې تاوېدے شي ـ دغسې ته مسلسلې بازيگري وئيلے کېدے شي.

**ـــــ خوړل** :-

**ـــــ وهل** :- بازيگره اړول.

**ملاقات** :- (م + لا + قا + ت) (ع،اس،مذ ،ج ــــ ونه) سره ليدل کتل،مخامخ کېدل ،يو بل سره ملاوېدل.

**ـــــ کول** :- سره مخامخ کېدل ، يو بل سره ليدل يا ملاوېدل ، قبدې يا حوالاتي سره يا بل چا سره په مقرر يا ټاکلي وخت او ځاے کښې ملاوېدل.

**ملاقات کېدل** :- ليدل کتل کېدل.

کــه دې داسې ملاقات د سروې قد وۀ
د فاختې په څېر به کوکې په کوکو کړې (رحمان بابا)

**د ـــ کارت** :- (د ـــ کا + ر + ت).

**د ـــ کارډ** :- (د ـــ کا + ر + ډ) (انگ عپ تر،اس ، مذ ،ج ـ ونه) هغه وړوکے شان کارډ ، په کوم چې د چا نوم او پته وغېره ليکلې وي او چې چا سره ليدل غواړي نو اول دغه کارډ دننه دغې کس يا افسر ته ور اولېږي.چې هغه ئې په کارډ نوم وغېره د کتلو نه پس وغواړي.نو د کارډ خاوند ملاقات له لاړ شي. (انگ: وزيټنگ کارډ).

**ملاقاتي** :- (م + لا + قا + تي) (عپ ، تر، اس ، مذ ، ج ـــ ان) ملاقات کوونکے ، ملاوېدونکے، جېل (خانه) يا په حوالات کښې د ملزم سره ليدلو له راتلونکے

**ـــــ کارډ** :-

**ـــــ کارت** :- (و ـــــ د ملاقات کارډ).

**ملاقاتيان** :- (م + لا + قا + ت + يا + ن) د ,, ملاقاتي ،، جمع ده ـ ملاقات کوونکي

**ملاقاتيانو** :- (م + لا + قا + ت + يا + نو) د ملاقاتيانو بدل شکل دے ـ چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.

**د ـــ کمره** :- (د ـــ ک + م + ر) (عپ ، تر، اس،مو) په جېل (خانه) کښې هغه کوټه ،چېرته چې د قېديانو خپل خپلوان وغېره ورسره ملاقاتونه کوي. د ملاقات کولو کوټه.

**ملاقه** :- (م + لا + قه) (و ـــــ ملاغه).

**ملاقي** :- (م + لا + قي) (ع،اس،مذ) ملاقات کوونکے ، ملاوېدونکے.

**ـــ کېدل** :- يو بل سره ملاوېدل ، ملاقات کول ، ليدۀ کاتۀ کول.

چې خبر شوم د ساقي د جام له راحه
لکــــه مړے ملاقي شوم له ارواحه (رحمان بابا)

**مـلاک** :- (م + لا + ک) (ع ، اس ، مـذ ، ج ــــ ان / يـن) مالـک ، د زمکـې مالک ، لينډ لارډ.

**ملاکي** :- (م + لا + کي) (اس ، مع) د بني اسرائيلو د يو پېغمبر[۴] نوم چې ذکر ئې په عهد نامه قديم کښې راغلے دے.

**ملاگان** :- (م + لا + گا + ن) (اس ، مع) د ايپي څانگه ده. ايپي ، حېدر خېل ، تپي زاد دوړ دي.

**ملاگوډے** :- (م + لا + گو + ډے) (پ تر ، اس ، مذ) د هلکانو يوه لوبه ، چې يو هلک د بل په ملا سور شي او د نورو لوبغاړو نه چاپېره گرځي.

**ملاگوري** :- (م + لا + گو + ري) (اس ، مع) د پښتنو لويه قبيله ده ـ خو د دويي د اصل په حقله اختلاف دے ـ ځينې وائي چې دلزاکو سره تعلق لري او ځينې وائي چې دراني دي او ځينې وائي چې غلزئيو سره تعلق لري ـ د دوي څلور څانگې دي ـ يعني دولت خېل،احمد خېل ، تار خېل ، پهاړ خېل.البته دا خبره د تاريخ په کتابونو کښې واضحه ده چې د څوکني په شان ملاگوري هم د غوري خېلو سره پېښور ته راغلي دي.وئيلے شي چې څوکنے او ملاگورے د ابراهيم غوري بابا متبنٰي وو. کله چې غوري خېلو يعني خليلو، مهمندو له داؤدزيو سره دلته راغلهٔ نو يو (څوکنے) ئې جنوب کښې واچولو او ملاگورے ئې قطب کښې واچولو ـ د پېښور جائيداد غوري خېلو خپلو کښې تقسيم کړو ـ دوي ته ئې په کښې جائيداد ورنهٔ کړو ـ ځکه چې نهٔ ئې کېدلو ـ دواړه تر اوسه د خليلو ، مهمندو او داؤدزو په جائيداد پراتهٔ دي.

**ملاگے** :- (م + لا + گے) (اس ، مـذ ، ج ـــــ گي) د ,, مـلا ،، تصغير دے ـ وړوکے ملا د ملاټې په شان ملاگے، هم د سپکاوي په په غرض وئيلے شي.

**مـلال** :- (م + لا + ل) (صـف ، مـذ ، مـو ــــــ ه) خفگـان ، دلگيـري ، د زړۀ مړېدنه ، ستړيا ، خفه ، ملول ، غمژن ، زهير.

چې د شعر فکر ورشي په مجلس کښې
نـــور عـــالم خندا هوس کا دے ملال (خوشحال)

**ـــ انگېـز** :- (ـــــ ان + گې + ز) (ف تر ، صف،مذ ،مو ـــــ ه) مـلال پېـدا کوونکے ،خفگان پېدا کوونکے ، خفه کوونکے.

**ـــــ کاتهٔ** :- (ـــــ کا + ت) (پ تر ، اس) په مړاوو يا نيم پرانستو سترگو کتل داسې د چا عادت هم کېدے شي او د درد يا غم له وجهې هم.خو د ښکلو په هر حال يوه ښکلا او دا حسابېږي. په ناز انداز چاته کتل.

په مـلال ملال کاتهٔ عاشقان وژني
ستا په سترگو چرې دي د قصاب (خوشحال)

**ـــــ کېدل** :- خفه کېدل ، رنجيده کېدل ، مړاوي کېدل.

**ملالت** :- (م + لا + لت) (ف تر ، اس ،مذ) مـلال والے ، خفگان ،د زړۀ تنگېدنه ،د زړۀ ستړيا ، بې ځُرته کېدنه ، مړاوي کېدنه.

**ملالو** :- (م + لا + لو) د ,, مـلالے ،، بدل شکل چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.

ستا ملالو سترگو پوچ کړ
واړه کار د سحـــر ســـاز (خوشحال)

**ملاله** :- (م + لا + له) د ,, ملال ،، تانيث دے ـ ناز او ادا والـه ، مکېز کوونکے ، ښکلې ښځه.

**ملالې** :- (م + لا + لې) (پ تر ، صف ، مو) ناز ادا والـه ، عشوه گره ، کېځ

مکېځ کوونکي. ښکلي ښائسته ښځه.

**ملالي** :- (م+لا+لي)(ف، اس، مو) ملال کېدنه، خفه کېدنه، خفګان، د خفګان حالت، مړاوي والے.

**ملالې** :- (م+لا+لې)(پ تر، اس، ج ـــ لي) ناز نخرې کوونکې، په ناز نخره دوکه کوونکې.

**ملالي** :- (م+لا+لي)(پ تر، اس، ج) د "ملاله"، جمع ده. د "ملاله"، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ سترګي** :- (ـــ س+تر+ګي)(پ تر، اس، ج) مرې مرې سترګې، په داسې انداز کتونکي سترګې چې دغه انداز ئې ښکلا نوره زياته کړي.

**ملامت** :- (م+لا+مت)(ع، اس، مذ، ج ـــ ونه) داسې وينا چې څوک په خپلو کړو په کښې اورټلي شي. غلطي زباتونه، زورنه. مړۀ کېدنه.

**ـــ کول** :- رټل / چاته د خطا په وجه بد وئيل. پړ کول.

کـه نر کا د قضـا و هـم رضـا تـه
په هيچا باندې دې نۀ کا ملامت څوک (رحمان بابا)

**ملامته** :- (م+لا+م+تَ)(عپ تر، اس، مو، ج ـــ تې) د "ملامت"، تانيث دے. د مذکر دپاره هم ملامته وئيل عام دي.

**ـــ دے** :- (جمله) مجرم دے، خطا وار دے، قصور وار دے. غلطي ئې ثابته ده. پړ دے.

**ـــ کول** :- د کوم جرم يا خطا په وجه بد رد وئيل. مجرم ګرځول. خطاکار ګرځول، پړ کول.

**ـــ کېدل** :- مجرم ګرځېدل، قصور وار ثابتېدل، پړ کېدل.

**ـــ ګڼل** :- مجرم يا خطا کار ګڼل. پړ ګڼل.

**ـــ وئيل** :- رټل، د ګناه يا د خطا په وجه بد رد وئيل. پړه وئيل.

**ځان ـــ کول** :- خپله خطا منل، خپل قصور منل، خپله پړه منل.

**ملامتول** :- (م+لا+م+ت+ؤل)(و ـــ ملامته کول).

**ملامتيا** :- (م+لا+مت+يا)(پ تر، اس، مو، ج ـــ ګانې) پړه، ملامتـه کېدنه، محاورتاً ندامت يا د جرم يا خطا په وجه افسوس او خجالت او نور.

**ملامتېدل** :- (م+لا+م+تې+د+ل)(و ـــ ملامته کېدل).

**ملانـۍ** :- (م+لا+نـۍ)(پ تـر، اس مـو) مليانـه، ملائنـه، د مـلا ښـځه، عالمه ښځه

**ملانۍ** :- (م+لا+نۍ)(اس، مو) د مور د بچه دانۍ (مشميه) پرده. د رحم پرده.

**ملاو** :- (م+لا+و)(هـ، صف) يو ځاے، جخت شوے، شريک، همخيال، همکار. (هـ ـ ملانا) متفق.

**ـــ کول** : ملاوؤل، يو ځاے کول، ځبله جختول، مخامخ کول.

**ـــ کېدل** :- ملاوېدل، ملاقات کول، هم خيال / همکار کېدل، متفق کېدل.

**ملاوستنې** :- (م+لا+و+س+ت+نې)(پ تر، اس، مذ، ج ـــ ني) ملا تړونې، کمر بند، د لنګوټي کمربند.

**ملاوستې** :- (م+لا+و+س+تې)(اس، مذ، ج ـــ تي) کمـــر بنـــد، ملاوستنې.

**ملاونړه** :- (م+لا+و+ن+ړَ)(اس، مو، ج ـــ ړې) ملاوستنې، کمر بند، ملاوستې.

**ملاوېـدل** :- (م+لا+وې+دل)(مـص) يـو ځـاے کېـدل، سـره جختېـدل، ملاقات کول، ليدۀ کاتۀ کول. يو شان والے لرل. (هـ ـ ملنا، هند ـ ملړان).

**ملاهـي** :- (م+لا+هـي)(ع، اس، ج) د "لَهْـو"، جمع ده. لـوبې، بـازۍ، محاورتاً هغه څيزونه چې سړے د خداے د ياد (ذکر) نه غافله کوي.

**ملائـک** :- (م+لا+ئـک)(ع، اس، ج) د "مَلَـک"، جمـع ده. ملائکـې فرښتې. محاورتاً: ښۀ خلق.

**ملائکه** :- (م+لا+ئې+کَ)(عپ، تر، اس، مو، ج ـــ کې) فرښته، ښۀ انسان (محاورتاً).

**ملائکـې** :- (م+لا+ئـې+کـې)(ع، پ تـر، اس، ج) د "ملائکه"، جمع ده. ملائک، فرښتې.

**ملائم** :- (م+لا+يم).

**ملايم** :- (ـــ ي+م)(ع، اس، فا، مذ، مـو ـــ ه) نرم، پوست، مناسب، لائق، سزاوار. لکه: ملايم خوراک، ورو، په مزه، په ارام، تت. لکه: ملائمه هوا.

**ملائمت** :- (م+لا+ئې+مت)(ع، اس، مذ) نرمي، پوستوالے، نزاکت، نرے والے.

**ملائمول** :- (م+لا+ئې+م+ؤل)(مص) ملائم کول، نرمول، پستول.

**ملائمي** :- (م+لا+ئې+مي)(و ـــ ملائمت).

**ملايي** :- (م+لا+ئي)(اس، مو) ملائوب.

کـــه ډېر والاشي په پارسايۍ کښې
سيال دې څوک نۀ وي په ملايۍ کښې (خوشحال)

ملا سره متعلق، ملا ته منسوب.

**ملائينه** :- (م / مو+لا+ئۍ+نه)(پ تر، اس، مو ج ـــ نې) د "ملا"، تانيث ده. د ملا ښځه. عالمه ښځه. محاورتاً ښه ښځه.

**ملبوس** :- (مل+بو+س)(ع، اس، مذ، ج ـــ ونه / ات) ټوکې يعنې جامه کښې پټ، اغوستلې جامې کس.

**ملبوسات** :- (مل+بو+سا+ت)(ع، اس، ج) ګنډلې شوې جامې. د اغوستلو په سرولو هر قسم له جامې، څادرونه لوپټې او نور.

**ملبوساتو** :- (مل+بو+سا+تو) د "ملبوسات"، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ملت** :- (مـل+لـت)(ع، اس، مذ، ج ـــ ونه / ملل) قوم، چې پښتو کښې ورته "قام"، هم وئيلے شي. ملت هغه قوم ته وئيلے شي چې په ډېرو ملکونو، معاشرو، ژبو، رنګونو او نسلونو مشتمل کېدے شي. لکه ملت اسلاميه يا مسلمان ملت يا ملت محمديه او نور. دين، ملت د دين په معنو کښې هم راځي. لکه "ملتِ ابراهيمي"،. قرآن پاک کښې دا ټکے ډېر ځله راغلے دے. او د بت پرستو، يهوديانو او عيسائيانو د ملت ذکر په کښې شته. دين، مذهب او ملت ځينې خلق يو څيز ګڼي. خو داسې نۀ ده. بلکې د دين پېشوا يو پېغمبر وي او د مذهب پېشوا يو امتي وي. چې مجتهد في الشرح ورته وئيلے شي. لکه امام ابو حنيفه بن ثابت رح. نو په يو دين کښې بيا مذهبونه زيات کېدے شي. خو دغه مذهبونه دين نۀ وي جوړ کړي بلکې خلقو په کښې جوړ کړي وي. مذهب وائي. هم يوې "لارې"، ته. يوې "طريقې"، ته چې پرې خلق خپل ديني احکام په ځاے راوړي. پښتو کښې يوه محاوره ده. "په څلور مذهبه ناروا"، يعنې يوه ډېره غلطه خبره يا کار. دغلته څلور مذهبونو نه مطلب حنفي، مالکي، شافعي او حنبلي مذاهب دي. د فقهې په ابتدائي دور کښې لس يوؤلس مذهبونه جوړ شوي وو خو اووۀ تر ينه وخت تېرېدلو سره سره ختم شول. ځينې عربو ملکونو کښې د ځينې هغه ختم شوؤ مذاهبو کس نيم بيا موندے هم شي. متروکه مذاهبو کښې مذهب اوزاعي، ظاهري او طبري وغېره شامل دي. دغه اکثر اهل حديثو کښې وو.

**ـــ پرستي** :- (ـــ پ+رس+تي)(عف، تر، اس، مو) د ملت پرستش

کونه ، محاورتاً د خپل قوم پره او طرفداري کونه.

**ـــــ دوستي** :- (ـــــ دو + س + تي)(و ـــــ ملت پرستي).

**ملت** :- (مـل + ت)(صـف ، مـذ) هغـه سړے چې قرض واپس کولـو کښـې سست يا لټ وي. بې کاره ، خراب څيز پلن ، سور واله.

بيا مې اوږده شوه تر سينې د عقل ملته ږيره
نن به په خوا کښې ستا د مينې هلکان ونيسم (حسين)

**ملتان** :- (مـل + تـا + ن)(اس ، مـع) پـه مغربي پنجاب کښـې يـو لـوے او زوړ ښهر ، يو وخت پښتنائۀ په کښې د ډېر زور خاندان وو.

**ملتانى** :- (مل + تـا + نی)(صف ، مو) د ,,ملتـان ،، سره متعلق ، ملتـان تـه منسوب ، د ,, ملتانے ،، تانيث.

**ملتانے** :- (م / مو + ل + تـا + نے)(پ ، تر ، اس ، مـذ ، ج ـــ نې) ملتـان سره تعلق لرونکے ، ملتـان تـه منسوب . پـه ملتـان کښـې جوړ شـوے . د يـو مشـهور توريـالي نـوم .چې پېرنګيـانو سره ئې ډېرې مقابلې کړې وې . بهـادر ، توريـالے دا محاورتـاً دې ځکـه چې ,, ملتـان ،، نـوم د بهـادرۍ او مړتتـوب يـو علامـت ګرځېـدلے دے .خـو محـاوره کښـې اکثـر هغـه کمزوري ته طنزاً وئيلے شي چې هغه کلان کاري کوي.

**د ځان نه ـــــ جوړول** :- ځان ډېر توريالے او بهادر ګڼل.

**ملتبس** :- (مل + ت + بس)(ع ، اس ، مف ، مـذ ، مـو ـــ ه) پـټ کـړے شـوے . پوشيده. په التباس کښې راغلے ، شکي شوے ، شکي.

**ـــــ کېدل** :- اصـل حقيقت پټېدل،شکي کېدل ، پـه شک او شبه راتلـل ، التباس کېدل.

**ملتجي** :- (مل + ت + جي)(اس ، فـا) پناه لټوونکے ، د پناه ځـاے لټوونکے ، التجا کوونکے ، درخواست کوونکے .

**ملتفت** :- (مل + ت + فت)(ع،اس، مذ) الفتات کولو والـه ، توجه ورکوونکے ، غوږ اېښودونکے .

**ـــــ کول** :- توجه ورګرځول،په توجه کښې راوستل ، پام ورګرځول.

**ـــــ کېدل، چاته** :- توجه ورکول ، متوجه کېدل ، پام ګرځول چاته ، پام کول.

**ملتفتېدل** :- (مل + تت + فې + تې + دل)(و ـــــ ملتفت کېدل).

**ملتقا/ ملتقي** :- (مـل + ت + قـا)(ع،اس) هغـه ځـاےچېرتـه چې دوه څيزونـه يـا کسان يو ځاے کېږي.د ملاقات ځاے ، د دوؤسيندونو د يـو ځـاے کېـدو ځاے.

**ملتوب** :- (مل + تو + ب)(پ تر اس، مذ) ملګرتيا ، رفاقت ، پـه لاريـو ځـاے تلنه ، همراهي. دوستي.

**ملتوي** :- (مـل + ت + وي)(ع ، صف) کـوږ ، کـرلېچ والـه ، (پښـه وغېـره) پـه التوا کښې اچوونکے ،ډيل کوونکے ، توقف کوونکے .

**ـــــ کول** :- په التوا کښې اچول ، بل وخت ته اړول .توقف ورکول ، ځنډول ، لېټ کول ، مؤخر کول.

**ـــــ کېدل** :- پـه التـوا کښـې اچولے کېـدل ، بـل وخت تـه پرېښـودل کېـدل ، توقف اچول ، ځنډېدل.

**ملته** :-(مل + ته)(صف ،مو) د ملت مؤنث دے .مبتلے شوے، عموماً پيسـو ټکو په حقله وئيلے شي چې هغه ډېره مبتلې شوې وي چې په بازار کښـې نۀ چلېږي

جن چې ځان خوار کا ملت روپۍ شي
ملتـــه روپۍ پـــه قـــدر کمه وي (خوشحال)

**ملتهب** :- (مل + ت + هب)(ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) پـه لنبو شـوے ، غرغنډه شوے ، بل شوے ، سوے ، سوځېدلے.

**ملتهب** :- (مل+ت+هب)(ع،اس،صف ، مذ ، ج ـ ان / موـ ه) پـه لنبو کـوونکے ، بلوونکے ، پـه لنبو کېدونکے ، لنبه زن.

**ملتے** :- (مل + تے)(اس ، مذ ، ج ـ تي) نرم او ښوېدونکے څيز ، ښوے ،غړند .

**ملتيا** :- (مل + ت + يا)(و ـــــ ملتوب).

**ملټ** :- (م + لټ) د ,, منټ ،، بدل شکل دے.د وخت يوه وړه شان برخه.(د ګينتې شپېتمه حصه) دقيقه (انګ : منټ).

**ملټ** :- (م + لټ)(هـ ، اس ، جم) د يـوې ونې يـا بـوټي جړه ده.چې مـرۍ، سينې وغېـره د بيمـارۍ پـه وخت پـه دارو کښـې استعمالېږي .(هـ . ملټهـ ، ملټهي).

**ملجا** :- (مـل + جـا)(ع ، اس ، مـذ) د پنـاه يـا د پټېـدلو ځـاے،د امـن ځـاے ، پشتې ورکوونکے ، مددګار .

**ملح** :- (مل + ح)(ع ، اس ، مذ) مالګه ، نمـک ، ښائسـت ، ښـکلا . محاورتـاً خوند ، مزه.

**ملحه** :- (مل + خ) د ,, ملح ،، تانيث دے.

**ملحد** :- (مُل + حد)(ع ، اس ، مذ، ج ـ ان) الحاد کوونکے ، بې دينـه ، د حق نه ګرځېدلے ، هغه سړے چې د خپل مذهب نه وګرځي يا واړي.

**ملحدانه** :- (مـل + ح + دا + نـه)(عـف ، تر، تف) د ملحد پـه شـان ، د بې ديـن سړي په شان.

**ملحده** :- (مل + ح + ده)(اس ،مو، ج ـ دې / انې) د ,, ملحد ،، تانيث دے.

**ملحق** :- (مل + حق)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) الحاق شوے ، سره يـو ځـاے شوے ، سره نښتے ، پيوسته.

**ـــــ کول** :- يو ځاے کول ، يو بل سره پيوست کول ، ورجختول.

**ـــــ کېدل** :- يو ځاے کېدل ، يو بل سره جنګېدل،پيوستون کېدل.

**ملحقات** :- (مـل + ح + قـا + ت)(ع ، اس ، ج) هغـه څيزونـه چې کـوم بـل څيـز سـره پيوسـت وي . لکـه : د سـنيما عمـارت او ورسـره ټـول ملحقـات وسوځېدل.

**ملحقېدل** :- (مل + ح + ې + دل)(و ـــــ ملحق کېدل).

**ملحوظ** :-(مل + حو + ظ)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) لحاظ کـړے شـوے ، خيال ساتلے شوے.

**ـــــ خاطر** :- (ـــــ خا + طر)(په زړۀ کښې لحاظ ساتنه ، په زړۀ کښـې د کـوم څيز په حقله خيال يا توجه لرنه.

**ملخ** :-(م + لخ)(اس ، مذ ، ج ـ ان) ځينې خلق د ,, م ،، (ــَـ) وائي او ځينې ,,م ،، ساکن هم وائي .لکه : ملخ او ملخ خود ,, م ،، په حالت کښې د ,,ل ،، د (ــِـ) پـه ځـاے (ــَـ) وئيلے شي . د پښتنځۀ شپږ انچـه نـه تر هر څومره وړوکي جسم يوه حشره / چينجے يا ځناور دے چې وښو کښې هم اوسي لا په دښتو مېرو او سپلمۍ کښې هم هر رنګ کښې وي ځينې په کښې ټکي دار او ښائسته ډيزائنونو کښې هم وي .رنګين او ساده بې وزرو ټوپونـه وهونکي او وزرو واله الوتونکي هم وي .د وښو نه علاوه بوټو او ونو کښـې هم کښېني .خوراک ئې شينکے او وابښۀ او پاڼې وي او دغـه پـه خپلـه د مرغانو خوراک دے.ځينې غټ قسمونه په کښې انسانان هم خوري.

**داوبو ـــــ** :- (د ، او + بو ـــــ)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـ ان) دا قسم ملخ په اوبو کښې يا د ولو لختو خټو کښې اوسېږي.د اوبـو مـور هـم ورتـه وئيلے شي.دغه ړنا پسې هم را الوځي. (انګ.شرتپ).

**ملخ** :- (م + لخ)(اس ، مع) د ملي زادو يو قبيله ده .دوړ دي.د ملخ څانګې دادي : محمدخېل او لنډ .

**ملخان** :- (م + ل + خا + ن).

**مولخان** :- (مو + ل + خا+ ن) د ملخ جمع ده.

**قحطي ـــــ** :- (قح + طي ـــــ)

**قاتي ـــ** :- (قا + تي ــــ) (پ تر ،اس، ج) هغه خاص ملخان کوم چې په ګڼ شمېر کښې ليدلے کېږي او په يو ځاے الوځي ـ چېرته چې کښېني نو ها واچوي ـ لږ وخت کښې په لکونو کروړونو پيدا کېږي ـ چې کوم ملک ته ورشي ـ هلته هر قسم شنۀ وابنۀ فصلونه د ونو پاڼې وخوري ـ دغه شان هلته د قحط سبب وګرځي ـ ځکه ورته د قطحې ملخان وائي ـ دغه اکثر سرۀ نارنجي برګ برونګ رنګ کښې وي او څلور انچه پورې غټ او واړه وي ـ کله چې په چا ګوک مېلمانۀ يا قربانه ګڼ ورشي او د خوراک څيزونه ترې ټول خلاص کړي نو محاورتاً ورته د قحطې ملخان وئيلے شي ـ

**ملخص** :- (م + لخ + خص) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه) خلاص کړے شوے ، لنډ کړے شوے ، خلاصه ـ خالص کړے شوے ، لنډيز ، خالص پاک ـ

**ملخوځې** :- (مل + خو + ځې) (اس ، ج) يو قسم شين ساګ دے ـ خوشبويه ، د شوتلو په تنه يا ناپ او همدغسې پاڼې ئې وي اردو / هندکې کښې ورته ميتهي وئيلے شي ـ شمړيتې ـ

**ملخوزه** :- (م + ل + خو + زَ) (اس ،مو ، ج ــــ زې) (و ــــ ملخوځې) ـ

**ملخوزې** :- (مل + خو + زې) (و ــــ ملخوځې) ـ

**ملخے** :- (م + ل + خے) (اس ، مذ ، ج ــــ خي) د ,, ملخ ،، تصغير دے ـ يو قسم ټوپک دے ـ يوؤلس ډزے ټوپک ، تهري ناټ تهري ـ

**ملذذ** :- (م + لذ + ذذ) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه) لذت لرونکے ، لذت ورکړے شوے ـ خوند ورکړے شوے ، خوندور ، مزېدار ـ

**ملذذ** :- (م + لذ + ذذ) (ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) لذت ورکوونکے ، خوند ورکوونکے ـ

**ملزم** :- (مُل + زم) (ع ،اس، مذ ، ج ـــ ان / ين) هغه چې الزام پرې لګولے شوے وي ـ تهمتي ـ (چې جرم ئې ثابت شي نو بيا ورته مجرم وائي) ـ

**ملزوم** :- (مل + زو + م) (ع ، اس ، مف ، مذ ، ج ـــ ان / ات) لاژم کړے شوے ، تړلے شوے ، چې د بل څنې نشي جدا کېدے ـ

**لا زم (او) ـــ** :- (لا + زم ـــــ) يو بل سره لاژم کړے شوي څيزونه ، چې څبله نشي جدا کېدلے ـ ځکه چې يو وي نو ضروري دي چې بل به هم ورسره وي ـ لکه : اور او رڼا لاژم ملزوم دي ـ

**ملعب** :- (مل + عب) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د لوبو کولو ځاے ، د لوبو هال ،د لوبو مېدان ـ

**ملعبه** :- (مل + ع + به) (ع ، اس ، مو ، ج ـــــ بې / ملاعب) د لوبو څيز ، ګوډۍ ـ

**ملعون** :- (مل + عو + ن) (ع،اس مف ، مذ ، ج ــــ ان) هغه کس چې لعنت پرې (وئيلې) شوے وي ، لعنتي ، شړلے شوے ،مردود ، شېطان ـ

**ملعونه** :- (مل + عو + نه) (اس ، مو، ج ـــ نې / انې) د ,, ملعون ،، تانيث دے

**ملغا** :- (مل + غا) (و ـــــ ملغي) ـ

**ملغلره** :- (مل + غ + ل + ر) (اس ، مو ، ج ـــ رې) غمے ، موتي ، جوهر ، مرغلره

**ملغوږ** :- (مل + غو + د) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) دوکه باز ، فرېبي ، درغل ، مکار ـ

**ملغوزے** :- (مل + غو + زے) (اس ، مذ) ماقوت ، ماغوت ، د خوراک يو څيز دے ، زيږنے ، سنختاړ ـ

**ملغي** :- (مل + غا) (ع ، ص) الغا شوے ، منسوخ شوے ـ

**ملفوظ** :- (مل + فو + ظ) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه) تلفظ شوے ، په خولۀ وئيلے شوے ـ

**ملفوظه** :- (مل + فو + زه) د ,, ملفوظ ،، تانيث دے ـ هغه چې تلفظ ئې کېږي ـ هغه چې په وينا کښې راځي ـ

**ملفوف** :- (مل + فو + ف) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه) نغښتے شوے ، لفافه کړے ، په لفافه کښې بند ، په کڅوړه کښې نغښتے ـ

**ـــــ کول** :- په لفافه کښې بندول ، په کاغذ کښې رانغښتل ـ

**ملقب** :- (م + لقُ + قب) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه) لقب ورکړے شوے ، خطاب ورکړے شوے ، لقب لرونکے ، لقب يافته ـ په يو حسب حال يا ورسره سمون خوړونکي نوم ـ ياد کړے شوے ـ

**ـــــ (دے)** :- لقب لرونکے ـ

قلب د مومن ګوره ملقب په عرش الله دے
زار د ازارجويو ، چې د زړۀ په بازار بلوسي (حافظ)

**ملک** :- (م + لک) (ع،اس، مذ ، ج ــ ملائک) فرښته ، ملائکه ـ

**ـــ خويه** :- د فرښتو هسې خوي لرونکے ، نېک ، صالح ، ښۀ بنده ـ

پري رويه سنبل بويه ملک خويه
عنبر بوره لاله فامه راشه راشه (رحمان بابا)

**ـــــ الموت** :- (ــــ (ال) مو + ت) (ع ، تر ،اس،مذ) د مرګ فرښته ، عزرائيل [۴] مجازاً مرګ ـ

بدخوئي علاج د ملک الموت دے
نۀ پـه ډېر علاج خبر حکيم حاذق (خوشحال)

**ملک** :- (م + لک) (و ــــ ملخ) ـ

**ملک** :- (م + لک) (ع ، اس ، مذ ، ج ــ ملوک) بادشاه ، تاجدار ، فرمان روا ـ

**ـــــ التجار** :- (ــــ (ال) تُج + جا + ر) (ع، تر،اس،مذ) د تاجرانو بادشاه ، لوے تاجر ، لوے سوداګر ـ

**ـــــ الشعراء** :- (ــــ (ال) ش + ع + را) (ع،تر،اس،مذ) د شاعرانو بادشاه ، يو لقب چې پخوا به بادشاهانو د ټولونه لوړ شاعر ته ورکولو ـ

**ـــــ زاده** :- (ــــ زا + د) (عف ،تر،اس ،مذ ، ج ــ ګان) د ملک (بادشاه) زوے ، شاهزاده ـ

**ملک** :- (م + لک) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) (۱) د قبيلې مشر ،د قبيلې يا د قوم سردار ، (۲) د کندي مشر ، د چم مشر (۳) د حکومت د طرفه مقرر شوے مشر ، نمبردار چې ماليه ابيانه ټولوي او حکومت سره تعاون کوي ـ (ځيني خلق ئې جمع ,, ملکانان ،، هم کوي) ـ

**ـــــ زاده** :- (ــــ زا + ده) (فپ ، تر ، اس ، ج ــ ګان) د مَلک زوے ، د قبيلې د سردار زوے ـ

**کېدل** :- د قبيلې مشر کېدل ، د کندي محلت مشر مقررېدل ـ

**ملک خېل** :- (م + لک + خې + ل) (اس ، مع) د ناصرو څانګه ده ـ غلزي دي ـ

**ملک خېل** :- (م + لک + خې + ل) (اس، مع) د طاؤس خېلو څانګه ده ـ (طاؤس خېل ، سوګي خېل ، محمدخېل ، مخل ، ملي زاد دوړ دي ـ

**ملک خېل** :- (ددغه) (اس مع) د سکندر خېلو څانګه ده ـ (سکندرخېل ، عبدل خېل ، بوراخېل ، مهمت خېل ، اتمانزي ، درويش خېل) وزير دي ـ

**ملک خېل** :- (ددغه) (اس مع) د ميري خېلو څانګه ده ـ (ميري خېل ، لنډ ، ملخ ، يازاد) دوړ دي ـ

**ملک خېل** :- (ددغه) (اس ، مع) د کاکاخېلو څانګه ده ـ (کاکاخېل ، بومۍ ، نصرۍ ، کالو خېل ، احمد زي ، درويش خېل) وزير دي ـ

**ملک خېل** :- (مَ + لُک + خې + ل) (اس ، مع) د موسىٰ خېلو څانګه ده ـ (موسىٰ خېل ، کوز سوليزۍ ، بائيزي، اکوزي) يوسفزي دي ـ

**ملک خېل** :- (ددغه) (اس ، مع) د معروفو څانګه ده ـ (معروف ، بابوزۍ ، بائيزۍ ، اکوزي) يوسفزي دي ـ

**ملک دينۍ** :- (م + لک + دي + نې) (اس مع) د منزئيو څانګه ده ـ (منزۍ ،

علي زئ محسود دي.

**ملك زئ** :- (م + لک + زئ) (اس ، مع) د منګي زئيو څانګه ده . (منګي زئي ، لهر زئي ، موسٰى خېل دي.

**ملك زئ** :- (ددغه) (اس مع) د اتمان خېلو څانګه ده. (اتمان خېل، سنځر خېل) کاکړ دي.

**ملك زئ** :- (ددغه) (اس مع) د لاړو څانګه ده . (لادو ، رکهنوال) لوني يا لوڼي دي.

**ملك زئ** :- (ددغه) (اس ، مع) د نور زئيو څانګه ده. تور ترين دي.

**ملك زئ** :- (ددغه) (اس، مع) د عمرخېلوڅانګه ده. استانه دي.

**ملك زئ** :- (ددغه) (اس ، مع) د غنجيو څانګه ده . غنجي ، زرکون دي . د ملك زئيو څانګې دادي : جمال زئ ، بهرام زئ او باران زئ.

**ملك زئ** :- (ددغه) (اس ، مع) د علي زئيو څانګه ده . (علي زئ ، اڅکزي) ابدال ترين دي.

**ملك شاهي** :- (م + لک + شا + هي) (اس ، مع) د ابمل خېلو څانګه ده. (ابمل خېل ، بهلول زئ) محسود دي.

**ملك شاهي** :- ( ددغه) (اس ، مع) د ولي خېلو وړه شان څانګه ده . (ولي خېل ، اتمانزئ ، درويش خېل) وزير دي (اکثر خلق ئې کډه پسري دي) جمال خېل او متکی د ملك شاهيو څانګې دي.

**ملك يار** :- (م + لک + يا + ر) (اس مع) د تورترينو څانګه ده . د ملك يارو څانګې دادي. شاغلزئ او شادي زئ .

**ملك** :- (مُل + ک) (ع ، اس، مذ، ج ــونه / ممالك) (۱) د زمکې يو لويه خطه . (۲) د زمکې هغه خطه چې په کښې يو خاص قوم اوسي. وطن. (۳) د زمکې يو خاص خطه چې يو بادشاه يا حکمران لري. سلطنت.

**ــــ پروري** :- (ــــ پَر + و + ري) (ع ف ، تر ، اس ، مو) د ملك پالنه ، د خپل ملك د ودې ترقی او د ښېګړې خيال ساتنه ، د خپل ملك طرفداري او حمايت.

**ــــ تنګول، په چا** :- په چا باندې ډېر زيات ظلم زياتے کول . ډېر تکليف يا نقصان رسول.

**ــــ تورتم کول، په چا** :- په چا باندې ملك تياره کول ، مجازاً ډېر زيات ظلم زياتے کول ، ډېر خراب او سخت سلوك کول.

**ــــ سور اور کول، په چا** :- (و ــــ ملك تورتم کول) وطن کښې داسې زور زياتے يا سختي کول چې خلق په کښې تنګ شي. پسې راخيستل.

**ــــ ګير** :- (ــــ ګي + ر) (عف ، تر، صف، مذ ، مو ــــ ه) (۱) ملك نيوونکے ، وطن نيوونکے ، ملك فتح کوونکے . (۲) په درست ملك کښې خوربدونکے . په ټول ملك حاوي. ټول ملك سره تعلق لرونکے .

**ــــ ګيري** :- (ــــ ګي + ري) (عف ، تر، اس، مو) ملك اخيستنه ، ملك فتح کونه.

**ملك** :- (مِل + ک) (ع، اس، صف) ملکيت ، جائيداد ، مال او اسباب.

**ــــ يمين** :- (ــــ (کې) + يَ + مِي + ن) (ع ، تر ، اس) (۱) د ښي لاس ملکيت ، (۲) غلام ، وينځه ، مرئيے يا مريونه.

**ملكال** :- (مَلْ + کا + ل) (اس ، مع) د ټکري والو يوه قبيله ده. سواتي دي.

**ملكاڼې** :- (مَلْ + کا + ڼې) (اس ، مو) (۱) د ملك مؤنث دے . (۲) د ملك ښځه.

**ملكوت** :- (م + ل + کُوْ + ت) (ع ، اس ، مذ) (۱) بادشاهي، سلطنت، حکومت . (۲) د فرښتو دنيا ، د فرښتو د اوسېدلو ځاے . (۳) (تصرف) عالم ارواح ، د روحونو وطن.

**ــــ صفات** :- (ــــ ص + فا + ت) (عف ، تر، اس ، ج) هغه صفتونه کوم چې فرښتو سره مخصوص دي. د فرښتو په شان پاك صفتونه.

**ملكونډه** :- (مَلْ + کو + نْ + ډَ) (و ــــ ماركونډې).

د اشرف د ملكونډيو غم لړ نۀ وو
د افضل د اغزيو کبر لا ستم دے (خوشحال)

**ملكونو** :- (مِل + کُوْ + نو) د "ملکونه" ، بدل شکل دے . چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**په ــــ** :- (پَ ــــ) (۱) په ملکونو کښې، محاورتاً : تر لرې لرې پورې.

قضا چې ورشي بلا پرې سازه شي
کــه پــه ملكونو چېرې بلا نۀ وي (خوشحال)

(۲) ډېر زيات، په کثرت سره ، په ګڼ شمېر کښې.

**ملكه** :- (م + ل + کَه) (ع ، اس ، مو ، ج ــــ کې / ات) (۱) هغه قوت علم يا هنر چې مشق سره حاصلېږي. مهارت ، کمان (۲) لياقت ، استعداد ، قابليت.

**ــــ حاصلېدل** :- کمال حاصلېدل ، مهارت لاس ته راتلل ، کمال حاصلېدل.

**ملكه** :- (م + ل + که) (ع ، اس، مو، ج ــ کې) د بادشاه بېګم ، بادشاه بېګم .

**ملكه** :- (مَ + ل + کَه) (اس ، مو ، ج ــ کې) د ملك مؤنث. د ملك ښځه.

**ملكۍ** :- (م + ل + کۍ) (اس ، مو) د ملوکې بدل شکل دے . معشوقه محبوبه ، ښکلې.

که تۀ خولۀ وماته نۀ راکړې ملكۍ
بلې هــم راتــه نومړۍ ده خولګۍ (خوشحال)

د ملکې تصغير دے.

**ملكي** :- (م + ل + کي) (عف ، تر، اس، مو) د بادشاه بادشاهي . حکمراني فرمان روائي.

**ملكي** :- (م + ل + کي) (اس، مو) نمبرداري ، د کندي يا د چم مشري . محاورتاً او طنزاً کلان کاري يا چالاکي کونه.

**ــــ كول** :- د قبيلې يا د کندي محلت مشري کول. نمبرداري کول. کلان کاري کول.

**مُلكي** :- (مُـل + کيْ) (عف، تر، اس ، مو) مُلك ، وطن سره تعلق لرونکے، ملك يا وطن ته منسوب ، د خپل وطن ، افسر مال.

**ــــ معاملات** :- (ــــ مُ + عا + م + لا + ت).

**ــــ معاملې** :- (ــــ م + عا + م + لې) مُلك سره تعلق لرونکے ، معاملې هغه مسئلې کومې چې ملك سره تعلق لري.

**ــــ وېش** :- (ــــ وې + ش) (فپ تر، اس، مذ) د ملك تقسيم.

**ملكي** :- (مِل + کيْ) (عف ، تر ، اس ، مو) مِلك سره تعلق لرونکے، مال ، جائيداد وغېره سره تعلق لرونکے .

**ملكيت** :- (مِل + کي + يَتْ) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) هغه څيز چې د چا په قبضه يا اختيار کښې وي. يعني هغه ئې مالك وي مال جائيداد وغېره.

**شخصي ــــ** :- (شَخْ + صيْ ــــ) (عف تر، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) ذاتي ملکيت ، هغه مال دولت يا زمکې وغېره چې کوم خاص سړے ئې مالك وي.

**فردي ــــ** :- (فَرْ + دي ــــ) (و ــــ شخصي ملکيت).

**د ــــ حق** :- (د ــــ حَقْ) د مالك کېدلو حق.

**ملكتي** :- (مِلْ + کيْ + يَ + تِيْ) (عف ، تر ، صف) ملکيت سره تعلق لرونکے ، ملکيت ته منسوب.

**ملكيزئ** :- (مَلْ + کي + زی) (اس ، مع) د ببل خېلو څانګه ده . موسٰى خېل دي . د ملکيزئيو څانګې دادي : ماليزئ ادين زئ ، رغدين زي او مغدوزئ.

**ملګر** :- (مَلْ + ګر) (سابقه) د "ملګرے" ، مخفف دے . د سابقې په طور

استعمالېږي.

**ـــــ توب** :- (ـــ تو + ب)(و ـــ ملګرتیا).

**ـــ تیا** :- (ـــ ت + یا)(پ تر، اس، مو) د لاري ملګرے کېدنه، رفاقت، دوستي.

**ـــ تیاپالل** :- ملګرے کېدل، حمایت کول، دوستي کول.

**ـــ تیا کول** :- ملګرے کېدل، د لارې مل کېدل، رفاقت کول، مل کېدل. دوستي کول.

**ملګرانې** :- (مَلْ + ګ + را + نې)(اس، مع) د سپین ترینو څانګه ده.

**ملګرے** :- (مَلْ + ګ + رے)(پ تر، اس، مذ، ج ـ ي) (۱) مـــل، د لارې مل، همراهي، رفیق. (۲) دوست، (۳) یو ځاے کار کونکے، هم کار.

**ـــ کول** :- (۱) په کار کښې ځان سره یو ځاے کول. (۲) په لار کښې ځان سره کول، (۳) دوست کول.

**ـــ کېدل** :- په کوم کار یا سفر کښې چا سره کېدل، همراهي کېدل، هم کار کېدل، رفاقت کول.

**ملګري** :- (مَـلْ + ګ + ري)(۱) د ,, ملګرے ،، جمع ده. (۲) د ,,ملګرے ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ توب** :- (و ـــ ملګرتوب).

**ـــ ملتونه** :- (ـــ مل + ل + تُوْ + نه)(پ تر، اس، ج) هغه قومونه چې په خپله کښې ئې د اتحاد معاهده کړې وي.

**ملګیري** :- (مَل + ګ + ري)(و ـــ ملګرتیا).

تـــر منزلـــه به هـــر ګز ونۀ رسېږي
له هغو سره چې نۀ وي ملګري ستا (عظیم)

**ـــ کول** :- ملګرتیا کول، مرسته کول، اعانت کول، طرفداري کول، پره کول.

وکړه ملګیري بلعم د خداے د غلیمانو
تاج ئې د ایمان بائلو رسوا نامه ئې زشته (حافظ)

**ملل** :- (مِ + لَلْ)(ع، اس، ج) د ,, ملت ،، جمع ده، ملتونه، قومونه.

**ملـل** :- (م + لـل)(مـص) دا مصدر لـه استعماله وتے دے. خو ځینې صیغې ئې استعمالېږي او د پرېملل معنٰی ورکوي. ځاے نیول قبضه کول، استوګن کېدل.

چـــې یو غـم ورځینې دروميې بل ئې ملي
زۀ حمید خداے په غمونو کښې اماج کړم (حمید)

**ملل** :- (مْ + لل)(مص) مېرل، چوېل، ځان له غوره کول ځاے نیول.

ښائسته لکه ګلونه زۀ طوطي یم
چې و وهر لوري ته ځم په ګلو ملم (خوشحال)

**مله** :- (مُ / مُو + لَ + لَ)(اس، مو)(۱) تذبذب، داسې حالت چې فیصله ئې نشي کېدې. په دوۀ کښې بند. لکه: دا خبره لا مله کښې پرته ده. (۲) په شک یا تردد کښې. (۳) حل طلب.

**ـــ کښې اچول** :- په دوۀ کښې حېرانول، یوه ټاکلې فیصله نۀ کول، مذبذب کول.

**ـــ کښې پرېښودل** :- (۱) بغېر د فیصلې پرېښودل، فیصله طلب پرېښودل، مذبذبه پرېښودل. (۲) په نیمه کښې پرېښودل.

**ملم** :- (مَ + لَمْ)(اس، ج) د ,, ملهم ،، بدل شکل دے.

**ملمع** :- (مُ + لَمْ + مَعْ)(ع، اس، مو) روښانه کړے، ځلق ورکړے. د سرو یا د سپینو زرو اوبۀ کړے. دو که، چې د بره نه یو څیز ښکاري خو په اصل کښې بل څیز وي. داسې نظم چې په کښې یو شعر یا مصرع د یوې ژبې وي او بل شعر یا مصرع د بلې ژبې.

**ـــــ ساز** :- (ـــ سا + ز)(عف، تر، صف، مذ، ج ـ ان، مو ـ ه) ملمع خېژوونکے، ګلټ جوړوونکے، په ګلټو وغېره د سرو یا سپینو زرو اوبۀ خېژوونکے.

**ـــــ کار** :- (ـــ کا + ر)(عف، تر، صف، مذ، مو ـ ه) منافق، چې ظاهر ئې یو شان وي او باطن ئې بل شان.

**ـــــ کول** :- په یو معمول دهات باندې د سرو د زرو یا د سپینو زرو تَهَه خېژول، د سرو زرو اوبۀ ورکول.

**ململ** :- (مَلْ + مَلْ)(اس، ج) یو قسم نرے ټُوکے، چې اُورې پُورې په کښې ښکاري، نرۍ کپړه.

**ملمه** :- (مُ + لَمْ + مَه)(و ـــ ملمع).

**ملنډه** :- (مَ + لَنْ + ډَه)(اس مو، ج ـ ډې) ټوقه، وشته، خندا، نخره.

**ملنډې** :- (مَ + لَنْ + ډې)(و ـــ ملنډه).

**ملنډې** :- (مَ + لَنْ + ډې)(۱) د ,, ملنډه ،، جمع ده. (۲) د ,,ملنډه ،، بدل شکل، چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ کول** :- ټوقې کول، خندا کول، مسخرې کول، نخرې کول.

**ـــــ وهل** :- (و ـــ ملنډې کول).

**ـــ وهونکې** :- (ـــ و + هو + ن + کې)(پ تر، اس، فا، ج ـ کي) ملنډې کوونکے، ټوقې کوونکے، خندا کوونکے، نخرې کوونکے، مسخره باز، ټوقمار.

**ملنډې** :- (مَ + لَنْ + ډې)(اس، مذ، ج ـ ډي) ملنډې کوونکے، مسخرې کوونکے، ټوقمار.

**ملنډۍ** :- (مَ + لَنْ + ډۍ) د ,, ملنډې ،، تانیث دے.

**ملنسار** :- (مِ + لَنْ + سا + ر)(هـ، صف، مذ، مو ـــ ه) د ښۀ ؤ اخلاقو څښتن، په ښۀ طریقه ملاوېدونکے، خوش اخلاقه، دروند خوي واله.

**ملنګ** :- (مَ + لَنْ + ګ)(ف، اس، مذ، ج ـــ ګان)(۱) سر سرتور، پښې ابله، مست (۲) فقیر، درویش، تارک الدنیا (۳) غریب، خوار، نادار.

چې څوک لاس د سود وکارې زیان نشته
پـــه ملنګ بـــاندې قلنګ او تاوان نشته (رحمان بابا)

**ـــــ توب** :- (ـــ تو + ب)(پ تر، اس، مذ) ملنګي، فقیري، درویشي.

**ـــــ د مصلې** :- (ـــ د، مُ + ص + ل + لې)(پ تر، اس، مذ) هغه درویش فقیر چې خپل مونځ او دس کوي. عبادت کوونکے ملنګ.

هوښیارانو څخه ډېرې اند ښنې دي
چـــې ملنګ د مصلې هغه انند کا (خوشحال)

**ـــ کېدل** :- (۱) فقیر کېدل، درویش کېدل، دنیا ترک کول، (۲) خوارېدل، ناداره کېدل، مفلس کېدل، هېڅ څیز چا څخه نۀ پاتې کېدل.

**ـــ کېدل، د چا د در** :- (۱) د چا په دروازه کښېناستل، د کوم مقصد دپاره د چا د دروازې وال ګرے کېدل. (۲) سم د چا په انتظار کښېناستل، اوږد انتظار کول.

**ملنګ زئ** :- (م + لَنْ + زئ)(اس، مع) د نوح زئیو څانګه ده، ایسوټ دي.

**ملنګه** :- (مَ + لَنْ + ګَ)(اس، مو، ج ـ انې) د ,, ملنګ ،، تانیث.

**ملنګي** :- (م + لَنْ + ګي)(و ـــ ملنګتوب).

**ملنګۍ** :- (م + لَـنْ + ګـۍ)(۱) د ,, ملـنګے ،، تانیـث دے. (۲) د هندوانې یو قسم دے چې د بهر دوه رنګه وي.

**ملنګے** :- (م + لَنْ + ګے)(اس، مذ، ج ـــ ان)(۱) د ,, ملنګ ،، تصغیر دے. ووړوکے ملنګ. (۲) د ځینو نارینه ؤ لقب.

**ملنګیان** :- (م + لَنْ + ګ + یا + ن)(و ـــ ملنګان)(اصلاً د ,, ملنګے ،، جمع ده) یو مشهور بوټے دے، کشمالو چې بوئین ئې هم د ملیریا جراثیم وژني. او تخم ئې په شربت کښې اچولے او څښکلے شي.

**ملو** :- (م + لو)(و ـــ مُلا).

**ملو** :- (م + لَو)(اس، مذ) د اوښانو لویه جولۍ، ترنګړ، غونج غوندې.

**ملواح** :- (مَلْ + را + ح) (ع ، اس) هغه ساتلے ځناور ، کوم چې ښکاريان د ښکار د راګېرولو دپاره استعمالوي .نور ځناور ددغې ځناور د اواز وغېره په وجه ورته راغونډ شي او په جال کښې ونښلي.

**ملوالے** :- (مَلْ + وا + لے) (و ـــ ملګرتيا ).

**ملوان زئ** :- (مَلْ + وا + ن + زئ) (اس ، مع) د لاړو ځانګه ده ، رکهنوال لونې (لوني) دي.

**ملوب** :- (م + لو + ب) (اس ، مذ ) (۱) ترمې وينې ، اويژنې وينې. (۲) خولۀ.

**ملوبه**:-(م + لو + ب) (اس ، مو ، ج ــ بې) زؤه ، د زخم نه وتونکے نرۍ نوژنه وينه نو.

ملوبه د دوزخيانو به ئې قوت وي

هم زقوم به خوري په حکم د قهار (پير محمد)

**ملوتے** :- (م + لو + تے) (اس ، مذ ، ج ــــ تي) (۱) د ,, مل ،، تصغير دے . (۲) هيجړا ، مخنث ، (محاورتاً).

که وسله د جنګ تر ملا کا په دا څۀ شو

ملوتي دے پـه ځوانانو حساب نۀ دے (علي خان)

**ملوث** :- (مُ + لو و + ث) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) لړلے شوې ، ککړ ، ګنده (۲) ناپاکه ، نجس.

ـــــ **کول** :- (۱) ککړ کول ، لړل ، الوده کول (۲) په کومه ګنده معامله کښې ملزم ګرځول ، کوم خراب کار کښې په برخه اخستلو ، بدنامه ول.

ـــــ **کېدل** :- (۱) ککړ کېدل ، لړلے کېدل ، الوده کېدل. (۲) په کومه خرابه معامله کښې شامليدل.

**ملوثي** :- (م + لو + و + ثي) (عپ ، اس ، مو) ملوث کېدل،ککړ والے ، په کوم ګنده کار کښې برخه اخستنه.

**ملودل** :- (م + لو + د + ل) (مص) ملـل ، خوښـول ، (ځان لـه) غـوره کـول چوڼل. د هلکانو په لوبه کښې ملګري غوره کول. د هلکانو پـه لوبـه کښې خپل مشر يا ,,مير،، په مخصوصه طريقه غوره کول.سپړل.

**ملودني** :- (م + لو + د + ني) سپړنے (و ـــ ملودل ).

**ملوډي** :- (م + لو + ډي).

**ميلوډي** :- (م + لو + ډي) (انګ ،اس، مو، ج ـــ ې) خوږۀ نغمه ، خوږ اهنګ ، سر لرونکې غاړه.

**ملول** :- (م + لو + ل) (ع، صف ، مذ ، مو ـــ ه) ملال لرونکے ،خفه،غمژن.

د ګلونو پاڼې بويه چې قميص شي د ملوکې

د رېښمو له قميصه ئې نازک بدن ملول دے (خوشحال)

**ملوک** :- (م+لو+ک) د ,, مُلوک ،، بدل شکل دے . دمشهور روماني قيصې ,,شهزاده ملوک او بدري جماله ،، هيرو.

**مُلوک** :- (مُ + لو+ک) د ,, ملک ،، جمع ده ، بادشاهان.

درست جهان ئې په غم ډوب کړ سر ترپايه

کـــه ګــدا دے ددې دهـــر که ملوک (رحمان بابا)

ـــ **الطوائف** :-(ـــ ک+ ال + ط +و + يف) (ع تر ، اس ، ج) د طائفو يعنې ډلو يا د قبائلو بادشاهان ، طوائف الملوکي،د قبيلې قبيلې بادشاهي ،د ډلو ډلو مشري.

ـــ **الطوائفي** :- (ک+ ط ) ط + وا + ئې+في) (و ـــ ملوک الطوائف ).

**ملوکانه** :-(م + لو + کا + ن) (عف،تر، تف) د بادشاهانو په انداز ، د بادشاهانو متعلق

ـــ **ذات** :- (ـــ ذا + ت) د بادشاه دپاره د عزت په طور وئيلے شي .بادشاه په خپل ځان.

**ملوکه** :- (م + لو + ک) (اس ، مو ، ج ــــ کې) د ,, ملوک ،، تانيث دے . ښکلې ښځه.معشوقه ، محبوبا .

**ملوکې** :- (م + لو + کې) د ,, ملوکه ،، جمع ده . د ,, ملوکه ،، بدل شکل ، چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

د ګلونو پاڼې بويه چې قميص ئې د ملوکې

د رېښمو له قميصه ئې نازک بدن ملول دے (خوشحال)

**ملوکيت** :- (م + لو + کي + يت) (ع ، اس ، مذ ) بادشاهي ، شخصي حکومت ، د بادشاهانو طور طريقې.

**ملول** :- (م + لو + ل) خفه ، پرېشانَ.

ـــ **کول** :- خفه کول ، پرېشانه کول.

ـــ **کېدل** :- خفه کېدل ، زړۀ ته خفګان رسېدل،خفګان کېدل.

**ملـول** :- (م + ل + ول) (مص) ځـاے ورکـول ، استوګن کـول (پـه ځـاے ) قـابض کول، ابادول.

کـــړې دي د زړونو ستا د مخ په لور رواني

واړه ملک بوستان دے په هر ځان ئې ملوه (خوشحال)

**ملونه** :- (م + لو + نَ) (اس ، ج) واګې ، لګام.

**ملونے** :- (م + لو + نے) (و ـــ ملونه ).

چې پخپله سر وملونې وته اوږد کا

هغه اس مې کله بند په کمند کېږي (خوشحال)

**مله** :- (م + لـه) (اس ، مـو ، ج ـــ لې) مصنوعي مرغـابۍ ، چې د مرغـابۍ پوست د وښو وغېره نه ډک کړي دغه ګوډے يا د لرګي نه جوړه کړے شي .(د ښکار دپاره پکارولے شي ).

**مله** :- (م + لَ) (اس ، مو ، ج ـــ لې) د ,, مل ،، تانيث.

**ملـه** :- (م + لَ) (اس ، مـو ، ج ـــ لې) د يـو بـوټي نـوم دے چې د قنـدهار پـه شګلورو کښې ډېر کېږي.

**مله** :- (م + ل) د ,, مل ،، جمع ده ، ملګري.

ـــ **کول** :- ملګرے کول ، مل جوړول.

يک تنها پـه لارې تلنه ده خوشحـاله

په دا هسې لار څوک څۀ د لارې ملۀ کا (خوشحال)

**ملهـار** :- (م + مـل + هـا + ر) (هـ ، اس ، مـو ) د يـوې راګنـې نـوم دے .چې د بارانونو په وخت وئيلې شي.پشکال ، برسات ، جړۍ.

چې د اوښکو له بارانه نۀ خلاصېږي

پر حنان دے تمام عمر د ملهار وخت (خوشحال)

**ملهم** :- (مل+هم) (اس ، جم) مرهم، د زخم وغېره دپاره هغه دارو چې دختې په شان نرم وي. محاورتاً هغه څيز يا کار يا کس چې د زړۀ ئې ملال لرې کوي.نور اوګورئ مرهم.

**مُلهم** :- (مُل + هِمْ) (اس ، فا ، مذ ، مو ـــ ه) الهام کوونکے ، دالهام په ذريعه د غيب خبر ورکوونکے .

**ملهمانه** :- (مُل + هـ + ما + نَ) (پ تر ، تف) دالهام غوندې ، د الهام په شان ، دالهام په انداز.

**ملهي** :- (مُل + هيْ) (ع ، صف) غافله کوونکے، په غفلت کښې اچوونکے .

**ملي** :- (مَ+ ليْ) (اسم ، مذ) اوګورئ شيخ ملي بابا د ,,مـل ،، څـخه دے لکـه ,,ملګرے،، نه ملګري.خو ,,ملګري،، جمع هم دے او ,,ملي،، جمع نۀ دے.

**ملي** :- (م + لي) (انګ ، سابقه) د زرمې برخې معنٰى ورکوي.

ـــ **ګرام** :- (ـــ ګ + را + م) (انګ ، اس) د ګرام زرمه برخه.

ـــ **ميټر** :- (ـــ مي + ټر) (انګ تر ،اس) د ميټر زرمه برخه ).

**ملي** :- (م+ لي) (فعل) د ,,ملل،، مصدر څخه د حال فعل.

**ملي** :- (م + لي) (فعل) د ,,ملودل ،، مصدر نه د حال فعل.

**ملي** :- (مِل +لِيْ) (عف ، صف ) کار هغه وغېره چې ملت يا قوم سره تعلق

لري۔ قومي۔

**ـــــ اقتصاد** :- (ـــ اقْ + ت + صا + د)(عف تر،اس، مذ) د قوم مالي حالات ،د قوم مالي مسئله يا خوشحالي۔

**ـــــ ترانه** :- (ـــــ ت + را + نه)(عپ، تر،اس،مو، جـــ نې) د نظم يا يو خاص قسم چې تعلق ئې ملت يا قوم سره وي، قومي سندره۔

**ـــــ ثروت**:- (ـــــ ثر+وت)(عف، تر ،اس ، مذ) قومي دولت۔

**ـــــ شورا**:- (ـــــ شُو + را)۔

**ـــــ شورىٰ**:- (ـــــ شُو + را)(عف، تر،اس، مو) د قوم د منتخب شوؤ ممبرانو مشاورتي مجلس۔

**ـــــ کول** :- د قوم ملکيت گرځول ،د حکومت په قبضه کښې راوستل ، د حکومت په واک اختيار کښې راوستل ، قومي کول۔

**ـــــ کېدل** :- قومي ملکيت گرځېدل ،د حکومت په واک اختيار کښې راتلل۔

**ـــــ مسئله** :- (ـــــ مَسْ + ءَ + له)(عپ ، تر ،مو، جـــــ لې) هغه مسئله يا معامله وغېره چې قوم سره تعلق لري۔

**ـــــ نهضت** :- (ـــــ نُهْ + ضَتْ)(عف ، تر،اس،مذ) قومي تحريک ۔د قوم ترقي۔

**ملي زاد** :- (مَلْ+ لي + زا +د)(اس،مع) ددوړو په دوه ؤ لويو قبيلو کښې يوه قبيله ده ۔ د ملي زادو څانگې دا دي ۔خدي ،ارغوند ،ملخ ، عمزوني ، زيرکي ، مبارک شاهي ، حسو خېل ، ملاګان ارمړخېل ، مسکي او دريه خېل۔

**ملي زئ** :- (اس ، مع) د سرغړه څانگه ده ، کاکړ دي۔

**ملي زى** :- (م+لي + زى)(اس،مع) د پښتنويوه مشهوره قبيله،د يوسفزي قبيلې د يو ښاخ نوم۔ددې قبيلې يوه ښځه۔(دمليزے تانيث)۔

**مليا** :- (مِ+ ل + يا)(ه ، صف) ملاؤ شوے، يوځاے شوے ، يوځاے ،ملحق۔

**ـــــ کول**:- يوځاے کول،ملاوَول،واصل کول، سره جختول ،

د گردون خاصيت کله د ښه منصف شي
کــه يـاران جدا کوي که بيا يې مليا کا (هجري)

**ـــــ کېدل** :- يوځاے کېدل،ملاوېدل،واصل کېدل۔

چې عاشق او معشوقه سره مليا شول
پـــه رېبار ئې نور څۀ نشته بې بلاغه (مرزاخان)

**مليار**:- (مل + يا + ر)(اس ، مذ ، جـــــ ان) باغوان ، د گلونو د بـاغ بـاغوان ، دګلونو ماليار ، هغه باغوان چې د گلونو نه همېلونه وغېره جوړوي۔

**مليار** :- (مِ + مَلْ + يا+ ر)(انگ ،فر،اس ، عدد) يو زرملينه ،يو بلين۔

**مليارہ** :- (مَلْ + يا + ر)(اس ، مو، جـــــ رې / انې) د ,, مليار، ، تانيث دے۔

**مليت** :- (مِ+ ملْ + لي + يَتْ)(ع ، اس،مذ) ملي والے ،قوميت۔

**ـــــ پرست** :- (ـــــ پ + ر + س+ت) قوميت پرست ، نېشنلسټ۔

**ـــــ پرستي** :- (ـــــ پَ + رَسْ + تي) قوميت پرستي ،نېشنلزم۔

**ـــــ خواهي** :- (ـــ خ + وا +هي) دخپل قوم ښۀ ښېګړه خوښونه ، قوم پرستي۔

**د ـــــ احساس** :- (د ـــــ ا+ ح + سا + س)(عپ ،تـر،اس ، مـذ) د قوميت احساس ، د خپل نوم د خبر ښېګړو خيال پيدا کېدنه۔

**ملتيارزم** :- (م + لي +تا + رِ+ز +م)(فر ،روس)(وـــ مليټرزم)۔

**مليټرزم**:- (م+ لي + ټ + رز + م)(انگ،اس،مذ) دجنګي سياست طرفداري ، جنګي سياست۔

**ـــ پوليس** :- (ـــ پو + لي + س)(ـــ پو + ل + س)(انگ ،تر،اس،مذ) هغه پوليس چې فوځ سره تعلق لري، د فوځيانو خپل پولس۔

**ـــــ سروس** :-(ـــ سر +وس)(انگ،تر ،اس ، مـذ) فـوځي ملازمت ، عسکري ملازمت

**مليح** :- (م + لي +ح)(ع ، مذ ،موـــــ ه) نمکين ، مـالگين ،ښکلے ،ښائسته ، زيبا ، سکڼ رنگے ، سکنې۔

**مليريا** :- (م+ لي + ري + يا)(انگ ، اس ، مو) سړلړے سره راتلونکې تبه ، د منې تبه ، مالاريا۔

**ملېدل** :- (م+ لي + د +ل)(مص) ملل ، چوڼ کېدل ،غوره کېدل ، د هلکانو په لوبه کښې ملګرے جوړېدل۔

**مليزي** :- (م + لي + زي)(اس ، مع) د رکهنوالو څانګه ده۔بوني يا لوني دي۔ د مليزئيـو څـانګې دي ۔چـوهړزئ، دريـا زئ، مصـروف زئ، احمـدزئ صدازئ او هوتي زئ۔

**مليزئ** :- (ددغه)(اس ، مع) د ناصرو څانګه ده۔غلزي دي۔

**مليزئ** :- (ددغه)(اس ، مع) دعبدالله زئيو څانګه ده ۔عبدالله زئ ،سنزرخېل کاکړ دي۔

**مليزئ** :- (ددغه)(اس،مع) د ابوبکر څانګه ده ، تورترين دي۔

**مليزئ** :- (ددغه)(اس مع) د اڅکزئيو څانګه ده ۔ابدال ترين دي ،د مليزئيـو څانګې دادي ۔پيرعلي زئ اصغر زئ ، بورئ زئ ، بوستان کهول او سفر زئ۔

**مليزئ** :- (ددغه)(اس ، مع) د حامد زئيو څانګه ده ۔(حامد زئ،اڅکزئ) ابدال ترين دي۔

**مليزئ** :- (ددغه)(اس مع) د ببل خېلو څانګه ده ، موسیٰ خېل دي۔

**مليزئ** :-(ددغه)(اس،مع) د پاريزنو څانګه ده ۔(پاريزن ، سنزرخېل) کاکړ دي۔

**مليزي** :- (م + لي + زي)(اس ، ج) د ,, ملي زے ،، جمع ده ۔

**مليزے** :- (م+ لي + زے)(اس ، مذ ،ج ـــــ ي) د مليزئ قبيلې يو فرد۔

**مليزيا** :- (م+ لي + ز +يا)(وـــ مليشيا)۔

**مليشيا**:- (م + لي + ش + يا)(انګ ، مو) هغه فوځ چې رضاکارانه برتي کړے شوي وي۔ د يو قسم ټوکرے چې توربخښن ايرې رنګې وي۔

**ملېماني** :- (م + لي + ما + ني)(اس ، مذ) د يوې مرغۍ نوم دے۔

**ملين**:- (مُ + لي + يَنْ)(ع ، صف ،مذ ،موـــــ ه) نرم کوونکے ، ملائم کوونکے ، قبض لرې کوونکے۔

**مم** :-(مَمْ)(اس ، مذ ،جـــــ ونه) د ماشومانو په ژبه د خوراک څښاک څيزته وائي۔

**مما** :- (مَ + ما)(انګ ، اس) بي بي ، مور ، ادې ، ابی۔

**ممات** :- (م+ما + ت)(ع ،اس ، مذ) مرګ ، موت ، مړ کېدنه۔

پس له دې مې دا استوګنه خدا ے نصيب کړه
پــه دا در کښې کــــه حيـــات دي که ممات (رحمان بابا)

**مماثل** :- (مُ + ما + ثل)(ع ، حرف) په شان ، په مثال ،مانند ، مشابهت لرونکے ، نظير ،غوندې۔

**مماثلت** :- (مُ + ما + ث + لت)(ع ،اس،مذ ،جـــــ ونه) مشابهت، يوشان والے۔

**ممارست** :- (م + ما + ر + ست)(ع ، اس ، مذ ، جـــــ ونه) مشق ، مهارت ، تجربه کونه ، کوښښ کونه۔

**مماست** :- (م +ما + ست)(ع ، اس ، مذ) مس کونه ، ګوتې ور وړنه ، تماس۔

**مماس** :- (مُ + ما+ س)(ع ،اس ،فا ، مذ ،موـــــ ه) مستي کوونکے ، ګوتې وروړونکے ، لکه : دا خط دائرې سره مماس دے۔

**مماشات** :- (مُ + ما + شا +ت)(ع ، اس ، مذ) چا سره يوځاے تلنه ، همراهي کونه ملګرتيا کونه۔

**مماطلت** :- (مُ +ما+ ط + لت)(ع ،اس ، مو،جـــــ تې) تـاخير ورکونـه ، ډيل ورکونه ، بل وخت ته اړول ، (وعده وغېره)۔

**مماطله** :- (مُ + ما+ ط + له)(وـــ مماطلت)۔

**ممالك** :-(م+ما+لک)(ع ،اس ،ج)د ,, مملکت ،، جمع ده ، مملکتونه یا ملکونه.

**ممالیک** :- (م + ما + لي + ک)(ع ، اس ،ج)د ,, مملوک ،، جمع ده ، مملوکان غلامان ، مریي.

**ممانعت** :- (مَ+ مَا + نَ + عَتْ)(ع،اس، مذ ، ج ـــونه) منع کونه ، بندېز ، بندش ، اکثر خلق د ,,ن ،، (ـــ) وائي او داسې وینا ئې غلط الهام وه.

**ـــ دے** :- (جمله) حکماً منع کړے شوے دے.ددې کار وغېره د کولو بصارت نشته.

**ـــ کول** :- منع کول، بندیز اچول،دکوم کار نه (حکماً) منع کول.

**ممانه** :- (م + ما + نِه)(اس ،مو ، ج ـــ ړې) د یوې غرئيزې ونې میوه ده.د تور شـان رنـګ وړې وړې خـوږې تـروې دانـې ئـې وي .د دارو پـه طـور هـم استعمالېږي.

**ممبر** :- (مِمْ + بَرْ)(انګ ، اس ،مذ ، ج ـــان) رکن ،غړے ، د یوې ډلې یا جرګې یو غړے.

**ـــ کېدل** :- د کومې ادارې رکن جوړېدل.

**ممبري** :- (مِمْ +بَ+ رِي)(انګ تر ، اس ، مو) ممبر کېدنه ، رکنیت ، دکومې جرګې یا ټولې غړے جوړېدنه.

**ممتاز** :- (مُمْ+ تا + ز)(ع ،صف ، مذ ، مو ـــ ه) امتیـاز ورکړے شـوے ، عزت ورکړے شوے.غوره، اعلی ، برتر.

پـــه ادب په ظرافت په رموز پوهې
د صحبت په علم څو رنګه ممتازې (خوشحال)

**ـــ کول** :- غوره کول ، د نوروپه مقابله کښې اوچتـه درجه ورکول.برتـري ورکول ، عزت ورکول.

**ـــ کېدل** :- لوړېدل،غوره کېدل،اوچته درجه موندل،عزت موندل.

**ممتحن** :- (مُمْ + تَ + حَنْ)(اس،مـذ ، مـو ـــ ه) امتحـان شـوے،ازئیلے،په تجربه کښې راغلے.

واوره دا خبـــره درتـــه وایم ممتحــــــنَ
واړه کارپه بخت دے په طالع دے نورسخن (خوشحال)

**ممتحن** :- (مُمْ + تَ + حِنْ)(ع ، اس ، مـذ ، جـــان / ین) امتحـان اخستونکے ، جاج اخستونکے.

**ممتحنه** :-(مُمْ + تَ حِ + نَه)(اس ، مـو ، جـــنې / انې) د ,, ممـتحن ،، تانیث دے.

**ممتنع** :- (مُمْ + ت + نَعْ)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) منع کړے شوے ، بند کړے شوے.

**ممتنع** :- (مُمْ + تَ + نِعْ)(ع ،اس ، مذ ، ج ـــان) منع کوونکے ، بندوونکے ، ناممکن ، ناشونے.

**ـــ الجواب** :- (ــ (ال) + ج+وا + ب)(ع تر ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) هغه خبره وغېره چې جواب ئې نشي کېدے.هغه چې جواب ئې ناممکن وي.

**ـــ الحصول** :- (ــ (ال) حُ + صُو + ل)(ع ،تر ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) هغـه کـار یا څیز چې حاصلېدل ئې ناممکن وي.

**ـــ العلاج** :- (ــ (ال)ع + لا+ ج)(ع ، تر،صف ،مذ ، مو ـــ ه) هغـه مرض چې علاج ئې ناممکن وي ناعلاجه مرض.

**ممتې** :- (مُم + تې)(اس ، واحد ، جمع ، مؤنث) د کوټې پـه سر د پوړیـو پـه اخر کښې یوه وړوکې شاه کوټګۍ چې په کښې دروازه لګېدلې وي .د پوړو یا شتکو چت.

**ممثل** :-(مُ + مَث + ثِل)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــان) مثـال جوړېـدونکے ، ایکټر ، اداکار

**ممثله** :- (مُ + مُثْ+ ثِـل)(اس ، مـو ، ج ـــلې / ات) د ,, ممثـل ،، تانیث ، ایکټرسه ، اداکاره.

**مّمد** :- (مُ + مِدْ)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) امداد کـوونکے ، مـددګار ،معاون ملګرے ،لاس کوونکے یا لاس ورکونکے.

**ممدوح** :- (مَمْ + دُو+ ح)(ع ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) هغـه چې مـدح ئې کړے شوې وي .ستائیلے شوے ، تعریف کړے شوے .هغـه سړے چې کوم شاعر ئې په تعریف کښې قصیده وئیلې وي.

**ممدود**:- (مَمْ + دُو + د)(ع،اس ، مف ،مذ ،مو ـــ ه) اوږدکړے شوے ، خوور کړے شوے.

**ممدوده** :- (مَمْ + دو + دَ)د ,, ممدود ،، تانیث دے . هغـه تورے چې د پاسه پرې د ,,مد ،، ( ٓ ) علامت وي.

**الف ـــ** :- (ا + لِفْ)(عف ،تر ، اس ، مذ) هغه الف چې دپاسه پرې د مد ( ٓ ) علامت وي.د اوږد اواز واله الف.

**ممدۍ** :-(مَ+مَ + دۍ)(اس ، مع) د شنګیو څانګه ده .(شنګې، بهلـوي زئ) محسود دي د ممدیو څانګې دادي.کرون خېل او بومې خېل.

**ممر** :-(مَ + مَرْ)(ع،اس ، مـذ ) د تېرېـدلو ځـاے ، راهګـذر ، لاره ګـودر . (مجازاً) سبب.

**ممرېز** :- (مَم + رېز)(اسم،واحد ، مذکر) مهمېز، د سوارۀ پوندې سره لګېدلے یو مېخ چې اس له پرې پونده ورکوي.(فارسي مهمېز).

**ممرېـز خېـل** :- (مَمْ + رې + ز + خې + ل)(اس ، مـع) د نیـازي پاونـدهٔ یـوه قبیله ده .(کېږه پسري دي).

**ممرېزخېل** :- (مَمْ + رې + ز + خې + ل)(اس ، مع) د توخي څانګه ده .غلزي دي

**ممزوج** :- (مَمْ + زو + ج)(ع ، اس ،مف ، مذ ،مو ـــ ه) ګډ کړے شـوے ، امیخته.ګډون.

**ممسک** :- (مُمْ + سِکْ)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) نیوونکے ،ایساروونکے، کنجوس،شوم ،امساک پیدا کوونکے ،امساک زیاتوونکے. (دارو)

د ممسک دولت په کار د محتاج نۀ شۀ
شمـــع نــــۀ کا اقتباس له شب چراغه (کاظم خان شېدا)

**ممغوړن** :- (مُمْ + غُوْ +ړن)(صف،مذ،مو ـ ه) ګنده، خیرن پیرن.

**ممکـن** :- (مُمْ + کِـنْ)(ع ،اس ، مـذ ، ج ـــات) امکـان لـرونکے ، هغـه کـار وغېره چې کول یا کېدل ئې شونے وي . شونے کېدونکے. اسان ، سهل. هغه څیز چې د بل نه بغېر قائم نشي پاتے کېدے.

**ـــ التقسیم** :- (ـــ (م+ل) تق+سي+ م)(ع، تر،اس، صف ،مذ ،مو ـــ ه) هغـه څیز چې وېشلے کېدے شي.برخې برخې کېدونکے څیز.

**ـــ الحصول** :- (ـــ (ال) حُ + صُو + ل)(ع تر، صف) هغـه کـار یـا څیـز چې حاصلېدنه ئې شوې وي.هغه چې حاصلېدنه ئې ممکنه وي.

**ـــ الوجود** :- (ــ (ال) و + جو + د)(ع،تر،اس،مذ ،مو ـــ ه) هغه چې په وجود کښې ئې راتلل ممکن وي .هغه څیز چې هستي او نۀ هستي ئې سره یو برابره وي. مخلوقات.

**ـــ الوقوع** :- (ـــ (ال) و + قو + ع)(ع،تر، صف) هغه کار یا څیز کوم چې واقع کېدے شي.چې واقع کېدل ئې شوې وي.

**ـــ دے** :- (جملـه) کېـدے شـي، شـوې خبـره ده .واقـع کېـدے شـي . پېښېدے شي

**ـــ کول** :- ممکن ګرځول ، شُونے ګرځول ، قابـل عمـل یـا قابـل وقـوع ګرځول.

**ـــ کېدل** :- د واقع کېدلو لایق کېدل ، شونے کېدل.

**ـــ ګرځول** :- شونے ګرځول ، قابل عمل ګرځول.

**ـــــ والے** :- (ـــــوا + لے)(عـپ،تر، اس، مذ) ممکن کېدنه ، د واقع کېدلو امکان لرنه.

**ترـــــ حده پورې** :- تر هغې حده پورې ترکومې چې ئې امکان کېدے شي ـ تر هغې پورې چې د چا وس رسي ـ

**ممکنه** :- (مُمْ + ک + نه)(ع،تر،اس،مو) د ,, ممکن ،، تانیث ـ

**ـــــ ده** :- (و ـــــ ممکن دے) ـ

**ممکنات** :- (مُـمْ +ک + نـا + ت)(ع ، اس ، ج) د ,, ممکنـه ،، جمـع ده ـ هغـه کارونه یا څیزونه چې کېدل ئې شُوني وي ـ وجود ، کائنات ـ

**ممکنول** :- (مُمْ +ک + ن + ؤل)(مص)(و ـــــ ممکن گرځول) ـ

**ممکنېدل** :- (مُمْ +کَ + نې + دل)(و ـــــ ممکن کېدل) ـ

**مملائي** :- (مُمْ +لا+ ئي)(اس ، مو) د مومیائي بدل شکل دے هغـه دوائي چې مات هډوکي پیوندلو او د گذار خوږلو دپاره پکارولے شي ـ

**مملکت** :- (مُمْ + ل + کَ + ت)(ع،اس،مذ ، ج ـــــ ونه)حکومت ، سلطنت ، بادشاهي ـ

**ـــــ داري** :- (دا + ري)(عـپ تـر ،اس ، مـو) د حکومـت چلونـه ، د سلطنت انتظام ـ

**مملکتي** :- (مُمْ + لَ + ک + تي)(عف ، تر ، صف) مملکت سره تعلق لرونکے ، مملکت ته منسوب،حکومتي،سلطنتي،بادشاهي ـ

**مملو** :- (مُمْ + لُو)(ع ، صف) ډک ، پُور ، لبریز ، معمور ـ

**مملوک** :- (مُمْ + لُوْ +ک)(ع ،اس،مذ ،ج ـــــ ان) هغه چې ملکیت گرځولے شوے وي هغه چې قبضه کړے شوے وي ـ په قبضه کښې راغلے ـ محاورتاً غلام ، مریے ـ

چې مملوک چې زوړ شي خپل مالک ازادي ورکه
زۀ هغـــه مریے یـــم زوړ عـــاجز له خدمتونه (حافظ)

**مملوکه** :- (مَمْ +لـو +کَ) د,, مملـوک ،، تانیث دے ـ پـه قبضـه یاتصـرف کښې راغلے ، په ملکیت کښې راغلے ـ

افـــرین دې په دا تورو شهلا سترگو
چې ئې بنکلے د کشمیر کړلې مملوکې (خوشحال)

**ممنوع** :- (مُمْ + لُو + ع)(ع ، اس مف ، مذ ، مـو ـــــ عـه) منع کړے شوے ـ ناجائز ، ناروا ـ د قانون یا د شرعې خلاف ـ

**ـــ الورود** :- (ـــ ال و + رُو + د)(ع، تر، صف ،مذ ، مـو ـ ه) هغـه څیزچې پـه ملک کښې راوړل یا راتنه یستل منع وي ـ

**ممنوعات** :- (مَمْ + نُوْ + عَـا + ت)(ع ، اس ،مذ) د ,,ممنوعـه ،، جمع ده ـ منع کړے شوي څیزونه یا کارونه ـ ناجائز یا ناروا څیزونه یا کارونه ـ

**ممنوعـه** :- (مَمْ + نُو + عَ)(ع ، صف ، مـو ، ج ـــــ ات) د ,, ممنـوع ،، تانیث دے ـ

**ـــــ علاقه** :- (ـــ عَ + لا+ قَ)(عـپ تر ،اس، مو،ج ـــ قې) هغـه علاقـه چې د فوځیـانو یـا د بلـې سـرکاري اداري دپـاره مخصوصـه وي اودغلتـــه د عاموخلقو ورتگ منع وي ـ

**ممنون** :- (مَمْ + نُو +ن)(ع ، اس، مف ، مذ ، مـو ـــ ه) هغـه چې احسان پرې شوے وي احسانمند ـ شکر گزار ـ

**ـــ کول** :- احسان کول د چا ،د احسان لاندې کول ،احسانمند کول ، شکر گزاره کول ـ

**ـــــ کېدل** :- د احسان د لاندې کېدل ، احسانمند کېدل ، شکر گزارکېدل ـ

**ممنونیت** :- (مَمْ + نو + نې + یت)(ع ،اس ، مذ) احسـانمندي ، د احسـان پـه وجه شکر گزاري ـ

**مموسې** :- (مَ + مو + سې)(اس،مذ ، ج ـــ سي) ټانگو ، بتېنگ ـ د ناشپاتو یـا د ناکو یو قسم دے ـ

**ممولـه** :- (م + مو + لـه)(اس ، مـو ، ج ـــ لـې) مېـوه ، د ماشـومانو پـه ژبـه ثمره (زړه پانگه) ـ

چې ئې محبت غالب شو
ددې هـــم د من ممولـــه (ارزاني)

**ممي** :- (مَ + مي)(انگ، اس،مـو،ج ـــ گـانې) پـه دارو،مصالحو وچ کړے مړے ـ

**ممیت** :- (مُ + مي + ت)(ع،صف،مذ،مو ـــ ه) وژونکے، مرگ راوستونکے ، د خداے پاک یو صفاتي نوم ـ

**ممیره** :- (مَ + مي + ره)(اس،مو،ج ـــــ رې) مامیره ، د کورکمان په شان یوه غرئیزه غوټه چې د سترگو په دارو کښې استعمالېږي ـ

**ممیز** :- (مَ + مِيْ + ز)(اس ، جم) مویز ، اوچ کړي انگور ، کشمش ، وڅکې ـ

**ممیز** :- (مُ + مَيْ + یَزْ)(ع ،اس، مذ ،مو ـــ ه) تمیز کړے شوے ، غـوره کړے شوے ، اعلٰی ـ

**ممیز** :- (مُ + مِيْ + یِزْ)(ع،اس،صف،مذ ،مو ـ ه) تمیـز کـوونکے ، غـوره کـوونکے ، اعلٰـی لـرزوونکے ،د ښـۀ او بـد فـرق کـوونکے اوادنٰـی فـرق پېژندونکے

**ممیزه** :- (مُ + مَيْ +یزَ) د ,, ممیز ،، تانیث دے ـ

**ـــــ قوت** :- (ـــ قُو + وت)(عف،تر،اس،مذ) هغه قوت چې بني ادم پرې د یـو څیـز او بـل څیـز کښـې فـرق معلومـولے شـي د ښـۀ او بـد فـرق معلوموونکے قوت ـ

**ممیزي** :- (مَ + مِيْ + زي)(اس،مو) مـویز،اوچ کړے شوي خاص انگـور وڅکې ، کشمش ـ

**ممېزئ** :- (مَ + مې + ز + ئ)(اس ، مع) د اوبو خېلو څانگه ده ـ شېراني دې د ممیرئیو څانگې دا دي ـ ترکي او سلطان زئ ـ

**ممېزئ** :- (ددغه)(اس،مع) د حېدر خېلو څانگه ده ، مندوخېل دي ـ

**من** :- (مَنْ)(هـ،اس،مذ) زړۀ،خاطر ، ځان ـ

هغه زړۀ چې نوم ئې من دے
بـاندې تل د حـق و تن دے (ارزاني)

**من** :- (مَنْ)(و ـــــ منې) ـ

**مـن** :- (مَنْ)(ع ،اس،مذ ، ج ـــــ ونه) د یـو وزن نوم چې مـونږ سره پاکسـتان کښې د څلوېښـتو سیرونو یا پنځوسو کلو گرامو برابر وي ـ په مختلفو سیمو کښې د من وزن مختلف وي ـ لکه په کابل کښې شپاړس پاوه وي او په قندهار کښې لس پاوه کوم چې د پېښور د اتو سیرو برابر راځي ـ پخواني طب کښې د من وزن په بل رنگ وو ـ (عامه جمع ئې منونه (میم زور سره) ده ـ خو ځیني وخت د میم سکون سره هم راځي ـ

منونه منونه ظلم جور په کښې پروت دے
د نـــــاترس خاطر ئې مهر مثقال نشته (خوشحال)

**ـــــ من غټېدل** :- ډېر ډېر غټېدل ، ډېره غوښه زیاتول (محاورتاً ډېر زیات خوشحالېدل ـ

**ـــ من غوښه اخیستل/اغیستل** :- ډېر زیات خوشحالېدل ، د خوشحالئ نه په بدن کښې غوښه زیاتېدل ، په جامو کښې نۀ ځائېدل ـ

**ـــــ منیا کول** :- (ـــ من + یا + کول) د خپل زړۀ تسلي کول ، د کومې خبرې یا معاملې اصل حقیقت معلومول ، ښۀ تحقیق او تسلي کول ـ

**قدم دـــــ من کېدل** :- قدم درنېدل ، قدم په گرانه کښېښودل ،تگ گرانېدل ـ

**مَنْ** :- (مَـنْ)(عـب،اس،جم) یـو قسم خوړوالے، چې ځینو وختونو کښـې د ځینو ونو په ښاخونو، پاڼو جمع شي، سکنجبین (و ـــ من اوسلوٰی) ـ

**ـــــ او سلویٰ** :- (ـــــ او + سَلْ + وا ) ( عپ ،تر، اس ) من يو قسم خوړوالے چې په خاص موسمونو کښې د ځينو ونو پاڼو لکه د پرخې وربېږي او سلویٰ لړزو تـه وائي. دا دواړه ځيزونه خدا ے پاک بني اسرائيلو لـه د هغـوي پـه صحرائي ژوند کښې د خوراک دپاره ورکړي وو. چې بغېر د څۀ خوارۍ او مشـقت نـه ورلـه پـه لاس ورتلـل - مجـازاً مفـت او بـې تکليفـه ملاوېدونکے خوراک.

**ـــــ من کول** :- په تکرار سره „ من ،، غوښتل. ( و ـــ من ).

مـــا ئي مزه د خوږو شونډو ده موندلې

ناست وم که ولاړ وم زړۀ هر کله من من کا (خوشحال)

**مِنْ** :- ( منْ ) ( حرف ) د عربی د جار توری دے او د ( له ) (څخه) (نه) وغېره معنې ورکوي.

**ـــــ جانب** :- ( ـــ جا + نبْ ) ( ع ، تر ، تف ) له طرفه د ..... له طرفه ..... د طرفه ..... دطرف نه ..... د چيټو خصوصاً د بلنې د رقعو په اخر کښې د نوم نه وړاندې ليکلے شي.

**ـــــ جمله** :- ( ـــ جُم + له ) ( ع ، تر ، تف ) په کل يا جمله ؤ کښې ، په ټول يا ټولو کښې دا ..... ( هر کله چې د ګڼو ځيزونو يا کسانو کښې د يو برخې يا د يو څو ذکر کوي وائي ).

**ـــــ وعن** :- ( ـــ ( نو ) عَنْ ) (حرف ) دواړه د عربی حرفونه دي - محاورتاً : ببخې ، بالکل ، ټيک په ټيک ، پوره په پوره ، ټکے په ټکے ، اکثر خلق دغـه (مَنْ) و عَنْ) وائي کوم چې غلط دے - ( مِن عَنْ ) پکار دے چې اووئيلے شي.

**ـــــ من** :- ( ـــــ من ) (لاحقه ) لاحقه ده. نورو الفاظو نه وروستو راځي. د صفت معنې پېداکوي. لکه شته من ، خو صحيح شتۀ (مند) دے.

**منا** :- ( مَ + نا ) ( اس ،مو، ج ـــ ګانې ) باورچي خانه ، د اَخلې پخلې کوټه.

**منا** :- ( مَ + نا ) ( اس ، مو، ج ـــ ګانې / وې ) څپرګے، چې عموماً پـه ونو کښې يا لوړو ځايونو کښې جوړولے شي چې په کښې د ښکار يا د څوکۍ دپاره پټ کښېني. هغه څپر چې د انګورو خېلې پرې خېرولے شوي وي.

دا ضعيف زړۀ به دې ډېر قوي محکم شي

لـــــه دې جـوړه کړه منا د زړۀ انګور ته (علي خان)

**منا** :- ( مَ + نا ) ( اس،مو ) پاک لمنې ، پرهېزګاري.

**منـا** :- ( م +نـا ) ( اس ، مـع ) د مکـې معظمـې نـه پـه لـږه فاصلـه کښـې يوځاے دے چېرتـه چـې حاجيـان قربـانی کـوي ، سـرونه خرئـي ، نوکونه اخلي ، شېطانان هم اوولي.

**منابر** :- ( مَ + نا + بِرْ ) ( ع،اس،ج ) د „ منبر ،، جمع ده ، منبرونه.

**منابع** :- ( مَ + نا + بِعْ ) ( ع،اس،ج ) د „ منبع ،، جمع ده. سرچينې.

**طبيعي ـــــ** :- ( طَ + بي + عي ـــــ ) ( عف،تر،اس ،ج ) قـدرتي سر چينې ، قدرتي منبعې.

**منات** :- ( مَ + نا + ت ) ( اس ،مع ) د عربو د يو بُت نوم چې د اسلام نه اګاهو د عربوځينو قبيلو ئې عبادت کولو. دا په مکه معظمه کښې وو. ( اصلاً دا يوه „ ديوي ،، وه. د جاهليت د زمانې د عربو يو مشهور بُت.

**مناجات** :- ( مُ + نـا + جا + ت ) ( ع،اس،مذ ، ج ـــ ونه ) دعـا ، عـرض ، التجـا ، خواست ، زاري ،الله پاک تـه د خپلې عـاجزۍ خبرې وړاندې کـول - هغـه نظم چې په کښې اول د الله پاک تعريف او خپله عـاجزي بيـان کړے شي - بيا دعا او غوښتے شي.

**مناجاتي** :- ( مُ + نا + جا + تي ) ( عف ، تر ، صف ) مناجات سره تعلق لرونکے ، مناجاتو ته منسوب ، مناجاتو واله.

**منادات** :- ( مُ + نا + دا + ت ) ( ع ،اس، مذ ) منادي ،اعلان ،په اعلان سره وئيـنه.

**منادیٰ** :- ( مُ + نا + دا ) ( ع ،اس ،مذ ) چاله چې اوازورکړےشي. څوک چې ( په لوړ اواز ) وبللے شي. ( ګرامر ) هغه نوم يا اسم چې د ندا توري پسې راځي. د ندا د توري او د منادیٰ نه ندائي مرکب جوړېږي.

**منادي** :- ( مُ + نا + دي ) ( ع،اس،مذ ) ندا ورکوونکے ، بلونکے ، اعـلان کـوونکے ، ډنډورچي.

**ـــــ کول** :- اعلان کول، ډنډوره وهل ، په زوره زوره خلقوته خبره اورول.

**منـار** :- ( مَ + نـا + ر ) ( ع ، اس ،مـذ ، ج ـــــ ونـه ) د نـور يـا د رڼـا ځـاے. لـوړ عمـارت چـې پـه کښـې د مسـافرانو د لار ښـودنې دپـاره د رڼـا ډيـوه کښېښودلے شي . يا په سمندرونو کښې د جهازونو د لار ښودنې دپاره جوړولے شي. لائټ هاؤس. محاورتاً : لوړه ستن ، لوړ رنګ ، عمارت، هغه لوړې څوکې والـه عمارت چې د بانګ دپاره جوړولے شي ،مُناره ، موناره.

**مناره** :- ( مُ + نا + ره ) ( اس ، مو، ج ـــــ رې ) د „منار ،، بدل شکل دے. پـه پښتو کښې د „ منار ،، په ځاے عموماً „منار ،، استعمالېږي.

چا ئې نوم راته وانۀخست چې دچادي

مناري ئـــې ډېـــرې وليـدي ولاړې (خوشحال)

**منازل** :- ( مَ + نا + زل ) ( ع ،اس ، ج ) د „ منزل ،، جمع ده. منزلونه ، د کوزېدلو ، پړاؤ کولو ځايونه.

**دقمر ـــــ** :- ( د ، ق + مَرْ ) ( عپ ،تر ،اس،ج ) د سپوږمۍ منزلونـه ، پـه هـره مياشت کښې د اتۀ ويشت شپو په لحاظ سره اتۀ ويشت منزلونه ګڼلے شوي دي - ( هندیانو د سپوږمۍ ددغې ګردش ۴۷ منزلونه مقرر کړي دي ).

**مناسب** :- ( مُ + نا + سب ) ( صف ، مذ ، مو ـــ ه ) موزون ، لائق ، زېبا ، شايان ، درست ، نسبت لرونکے ، جائز ، روا.

**ـــــ بلل** :- ( و ـــ مناسب ګڼل ).

**ـــــ ځاے** :- ( ـــــ ( د ) زا + ئے ) ( عپ تر ،اس،مذ ،ج ـــ يونه ) موزون ځـاے ، درست ځاے ، غوره ځاے.

**ـــــ ګڼل** :- موزون ګڼل صحيح ګڼل ، د ضرورت مطابق ګڼل ، درست ګڼل ، غوره ګڼل.

**ـــــ دي** :- ( ـــ دي ) ( جمله ) موزون کار دے ،په کار دي ،ښائي، درسته خبره ده ، معقوله خبره ده.

**مناسبت** :- ( مُ + نا + سَ + بَتْ ) ( ع،اس،مذ ،ج ـــــ ونـه / ات ) نسبت لرنـه ، موزنيت ، خپله کښې تعلق ، غوره والے.

**ـــــ لرل** :- نسبت لرل ، موزنيت لرل ، موزون „بودل ،، درست „ بودل ،،.

**مناسک** :- ( مَ + نا + سکْ ) ( ع ،اس،ج ) د „منسک ،، جمع ده ، منسکونه ، د حج ارکان ، د حاجيانو د عبادت ځايونه.

**مناصـب** :- ( مَ + نـا + صِـبْ ) ( ع ،اس،ج ) د „ منصب ،، جمع ده ، منصبونه ، درجې ، عهدې.

**مناظر** :- ( مَ + نا + ظِرْ ) ( ع،اس،ج ) د „ منظر ،، جمع ده ، د ليدلو ښکلي ځايونه ، په نظر کښې راتلونکي ښکلي ځايونه ، د تماشې ځايونه ، نظارې ، تماشې.

**مناظره** :- ( مَ + نا + ظَ + ره ) ( ع،اس،مو،ج ـــ رې / ات ) سره بحث کول ، مباحثه ، بحث او تکرار - هغه علم چې په کښې د بحث قاعدې او طور طريقې ښودلے شي.

**مناع** :- ( مَنْ + نا + ع ) ( ع،اس، فا ، مذ ،ج ـــ ان ) منع کوونکے ، بندېز اچوونکے ، بندوونکے ، ممانعت کوونکے.

**منافات** :- ( مُ + نـا + فـا + ت ) ( ع ، اس ) د يـو بـل نفي کونـه ، د يـو بـل ورکـول او

نیست کونه۔د یو بل ضداو نقیض۔یو بل سره سخت اختلاف۔

**ـــــلرل،چاسره** :- سخت اختلاف اونا موافقت لرل۔د یو بل ضد ,,بودل،،۔یو بل سره ئې یوځاے کېدنه ، ناشونے ,,بودل،، لکه : ډېر خوراک او صحت منافات لري۔

**منافذ** :- (م+ نا + فذْ)(ع ،اس ، ج ) د ,,منفذ ،،جمع ده۔ لارې ،سُوړې ، ورونه۔

**منافرت** :- (مَ +نا+ فَ + رت )(ع،اس،مذ ،جـــونه) دیوبـل نه نفرت ،دیوبـل نه کرکه ، د یو بل نه لرې اوسېدنه ،پرهېز۔

**منافست** :- (مُ +نا+ فَ + ست )(ع ،اس ،مذ ،جـــونه) د یــو بـــل نـــه د وړاندې کېدلو کوښښ منافسه ، معارضه کونه ، جګړه یا حسد کونه۔

**منافع** :- (مَ + نـا + فِعْ )(ع ،اس، ج ) د ,, منفعت ،، جمع ده ۔منفعتونه ، نفعې ، فائدې ، ګټې۔

**منافق** :- (مُ + نا + فِقْ)(ع ،اس ، صف، مذ ،ج ـــان) نفاق لرونکے ، ریاکار ، هغه سړے چې په زړهٔ کښې یو څهٔ وي او په ژبه ئې بل څهٔ ۔هغه سړے چې پـه ظاهره خـو مسـلمان وي خـو پـه حقیقت کښـې یعنـې پـه بـاطن کښـې کافروي۔

**منافقانـه** :- (مُ + نـا+ فـ+ قـا+ نَ)(عـف،تر، تـف) د منـافق سـړي پـه انـداز ، دمنافقت په طور ، ریاکارانه۔

**منافقت** :- (مُ + نا + فـ + قَتْ)(ع،اس،مذ، ج ـــونه) ریاکاري ، دورنګي۔

**منافقي** :- (مُ + نا+ فـ + قي )(و ـــ منافقت)۔

**منافي** :- (مُ + نا+ فِيْ)(ع ، صف) نفي کوونکے ،خلاف ، ضد ۔

**مقصد سره ـــــ** :- د مقصد سره سمون نهٔخوړونکے ۔د مقصد بـرعکس ، د مقصد نفي کوونکے ، د مقصد خلاف۔

**مناقـب** :- (مَ + نـا + قِـبْ)(ع ، اس ، ج ) د ,, منقبـت ،، جمـع ده ، منقبتونـه ، تعریفونه ، صفتونه۔د اهل بېتو اود لوړو صحابیانو مدح۔

**مناقشه** :- (مُ + نا + قَ+ شَـه )(ع ، اس ، مـو ، جـــشې / ات ) جګړه ، تنازعـه ، شخړه ، بحث مباحثه۔

**ـــــکول** :- جګړه کول ، تنازعه کول۔

**مناقصه** :- (مُ +نا + قَ+ صَ)(ع ، اس ،مو، جـــصې) د ټولو نه کمه بیعه ښودلو واله نه سودا کونه۔ټنډر غوښتنه۔

**ـــ کوونکے** :- (ـــکَ + وو + ن + کے ) ټنډر ورکوونکے ، کم نه کم قیمت ښودونکے۔

**منـاقض** :- (مُ + نـا + قِـضْ)(ع ،اس ، فـا ، مـذ ، مـوـــه) مـاتوونکے ، مخـالف ، ناموافق۔

**مناقضه** :- (مُ + نا + ق + ضَـه )(ع ، اس ، مـو ، جـــضې / ات ) د یـو بـل خبره ماتونه ، بحث مباحثه ، جګړه۔

**مناکحت** :- (م + نا +کَ + حَتْ )(ع ، اس ، مذ ) نکاح کونه ، وادهٔ (کونه)۔

**منـال** :- (م+ نا + ل)(ع ، اس ، مذ ) دکوم څیـز د حاصلېدلو ځـاے ، لکه زمکـه ، باغ ، پټي ، دوکان چې ددې ټولـو نه حاصلات کېږي۔ مـال دولت جائیـداد وغېره۔

مال منال عزت قوت نعمت غره کړه
ځـان ئې لید زهٔ ئې ګڼلے جبار نهٔ وم (حافظ)

**منام** :- (م + نـا + م )(ع ، اس ، مـذ ، ج ـــونـه ) دخوب کولوځـاے ،خواب ګاه ، خوب۔

**منان** :- (مَنْ + نا + ن )(ع ، صف ، مذ ) ډېر زیات احسان کوونکے۔د خدا ے پاک یو صفاتي نوم۔

**مناهج** :- (مَ + نا +هِجْ )(ع ،اس ، ج ) دمنهج جمع ده۔لارې ، طریقې۔

**مناهیج** :- (مَ+ نا +هي + ج )(و ـــ مناهج )۔

**مناهي** :- (م + نـا+ هي )(ع ، اس ، ج ) د ,,منهي ،، جمع ده ، منع کړے شوي کارونه ،ناجائز کارونه ، ممنوعات۔

**منع ـــــ** :- (مَ + نَ + ع ـــــ )(عـپ ، تـر ، اس مـو ) هـېڅ قسم ممانعـت ، (عموماً ,, منه منائي ،، تلفظ کېږي)۔

**منائي** :- (مَ + نا + ئي )(اس ، مذ ) ډانګ ،دلاس لرګے ، لوړ س

**منائي** :- (م + نا + ئي ) (اس ،مو) کبر ، غرور ، لوئي۔

**ـــــ کول** :- لوئي کول ، کبر کول۔

څو ښائست لرې دلبره
هونبره کبر و منائي کا (خوشحال)

**منبت** :- (مَ+ نَبْ + بَتْ )(ع ،اس، مف ، مذ ، ج ـــونه) هغـه نقش ګـري ، چې د خپلې سطحې نه راوتې وي۔ (لکه چې په روپـۍ باندې وي )(ددې اصل ,,نبت ،، دے چې د بوټې وغېره راټوکېدلو ته وائي )۔

**ـــــ کار** :-(ـــ کا + ر )(عف ،تر،اس ، مذ ، ج ـــان) هغه ماهر چې داسې کنستلي شوي ګلونه وغېره جوړوي۔چې هغه د عامې سطحې نه بهر راوتې وي۔

**ـــــ کاري** :- (ـــــ کا + ري ) د ,, منبت ،، کـاري ګـري ،هغـه نقـش ګـري چې سطحې نه بهر راوتې وي۔

**منبر** :- (مِمْ + بَرْ )(ع ،اس ، مذ ،ج ـــونه / منابر ) پـه جمـاعتونو کښـې د وعظ یا خطبې دپاره هغـه اوچت ځـاے چې درې پوړۍ لري۔او واعظ یا خطیب پرې ودرېږي یا کښېني۔

**منبسط** :- (مُنْ + ب + سط )(ع ، اس ، صفغ ، مذ ، مو ـــه ) بسط موندونکے ، خوربدونکے ، محاورتاً خوشحاله ، په سُر کښې۔

**منبع** :- (مَمْ + بَعْ )(ع،اس،مو،ج ـــعې/ منابع ) سرچینه،د راوتلو ځاے۔

**منـت** :- (منْ+نَـتْ ) یـا (م/ مـي + نَ+ تْ )(ع ، اس ، مـذ ،ج ـــونـه) زاري ، عاجزۍ سره خواست ، احسان ، نېکي ، ښېګړه۔

که عاشق د یار په تېغ مري
پـــرې منت دے دیــــار لا (خوشحال)

**ـــــــ بار** :- (ـــــ بـا + ر )(عف تر ، صف ،مذ ،مو ـــ ه ) احسـان منـد ،د احسان د لاندې۔

**ـــــباري** :- (ـــــ با + ري )(عف،تر،اس،مو ) احسان مندي۔

**ـــــدار** :- (ـــــــ دا + ر )(عف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــه) منت لرونکے ، احسان مند ، شکر ګذار۔

ربه ډېر اولاد دې راکړ منت دار یم
د خوبۍ غــــرۍ ئې بیائې په هر لـور (خوشحال)

**ـــــداري** :- (ـــــدا + ري )(عـف ، تـر ، اس ، مـو ) احسـان منـدي ، د احسـان مننه۔

**ـــــ کول** :- زاري کول ،په عاجزۍ سره غوښتنه کول ،احسان کول ، زباتول۔

که ئې دواړه ږېنې تناکې په خدمت شي
د خـــدمت منت دې نهٔ کا په دهٔ باندې (خوشحال)

**ـــــ ګذار** :- (ـــــ ګُ + ذا + ر )(عف، تر ، صف ، مذ ، مو ـــه ) احسـان منونکے ، احسان مند ۔

**ـــــوړل،دچا** :- احسان منل ، احسان مند کېدل۔

په ناحق په مـــامنت کاندي وګړے
ما داهسې منت نهٔ دے د چا وړے (رحمان بابا)

**ـــــوړونـے** :- (ـــــو + ړو + نـے )(پ ، تـر ،اس ، فا ،مـذ ، ج ـــنـي) احسـان مونکے ، احسان مند ۔

مخ دې په ښائست د زلفو نهٔ دے منت وړونے
پــــروت دے په دوکان د شرینۍ مچ شړونے (حمید )

**تر ـــ لاندې کېدل** :- د احسان تر لاندې کېدل ،احسان مند کېدل۔

د هغه د لاس اوبهٔ د حیات مه څښئکه
چــې اخر پرې لاندې کېږې تر منت (حمید)

**منت** :- (مَنْ + نَتْ)(ع ، اس ، مذ ، ج ـونه) منښته ، نذر نیاز.
**ــ پوره کول** :- منښته پوره کول ، د منښتې کار ترسره کول.
**ــ منل** :- منښته کول ، نذر نیاز منل ، منل.
**ــ ورکول** :- منښته پوره کول.
**منتج** :- (مُنْ + تَجْ)(ع ،اس ، مذ ، مو ـــ ه) د نتیجې په طور واقع شوے ـ د نتیجې په طور د کوم ماحصل راوتنه. د څهٔ کار / څیز یا د هغو د اثر خاتمه په صورت کښې.
**ــ کېدل** :- د نتیجې پـه طور واقـع کېـدل ، نتیجه راختـل ـ لکـه : دغـه اختلاف په لویه جګړه منتج شو.
**منتج** :- (مُـنْ + تـج)(ع ، اص ، صـف ، مـذ ، مـو ـــ ه) نتیجـه ورکـوونکے ، نتیجه پیدا کوونکے ، نتیجې ته رسېدونکے ، نتیجتاً واقع کېدونکے.
**منتخب** :- (مُنْ + تَ + خَبْ)(ع ، اس ، مـذ ، مو ـــ ه) انتخاب شـوے ، غـوره کـړے شـوے ، چـوڼ کـړے شـوے ـغـوره، چـوڼ کـړے ـلکـه : منتخب حکومت.

پــه هغه بوستان چې باد د خزان نشته
بلبلان ورځي ، تور زاغ منتخب نهٔ دے (حافظ)

**منتخب** :- (مُـنْ + تَ + خـبْ)(ع ، اس ، مـذ ، ج ـــ منتخبـین) انتخـاب کوونکے ، غوره کوونکے ، په ووټونو سره چوڼ کوونکے.
**ــ کول** :- غـوره کـول، چوڼ کـول ، انتخاب کـول ـ د ووټونو پـه ذریعـه چـوڼ کول.
**منتخبات** :- (ع ، اس ، ج) د ,, منتخب ،، جمع ده ـ چوڼ کړې ټکړې ، چـوڼ کړې نظمونه یا د نظمونو ځینې برخې.
**منتر** :- (مَنْ + تَرْ)(ه ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د خیال اله ، د جادو د دم وېنا یا ورد یا سبق ، وظیفه او دم (طنزاً) د وید (هندوانو د مقدس کتاب) ،د دمونو برخه.
**ــ دے ورڅخه یا ورسره** :- (جمله) د جادو دم یا وظیفـه ورد دے ورڅخـه ( محاورتاً ) چې کوم کـار غـواړې نو لکـه د جادو پـه شـان زر او خواه مخواه وشي ـ دم دے ورڅخه / ورسره.
**ــ لوستل** :- د جادو کولو سبق یا عبارت لوستل.
**ــ والا** :- (ـــ وا + لـه)(ه ، پ ، تـر ، اس ، مـذ ) د منترونـو وئیلـو والـه ، جادوګر.
**منتري** :- (مَـنْ + تَ + ري)(و ـــ منتـر والـه) (هـ) وزیـر ـ محاورتـاً هغـه سړے چې هر کار ئې لکه د جادو زر او ضرور کېږي.
**منتشر** :- (مُنْ + ت + شِرْ)(ع ، اس ، صف ، مذ ، ج ـــ ان / ین) نشر کوونکے ، خوروونکے ، خووریدونکے ، پراګنده (کېدونکے).
**منتشر** :- (مُـنْ + تَ + شَـرْ)(ع ، اس ، مـذ ، مـو ـــ ه) نشـر شـوے ، نشـر کـړے شوے ، خوور کړے شوے ، خور شوے.
**ــ کـول** :- نشـر کـول ، خـوورول ، پراګنـده کـول ، تـس نـس کـول ، مشـهورول ، پروپېګنډه کول.
**ــ کېـدل** :- خووربـدل ، نشـر کېدل ، پراګنـده کېـدل ، تـس نـس کېـدل ، مشهوربدل ، پروپېګنډه کېدل.
**منتظر** :- (مُنْ + تَ + ظِرْ)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـ ه) انتظـار کـوونکے ، لاړ کتونکے ، د چا د چا د راتلو امیدواره ، د کوم کار د کېدو په طمع.
**ــ اوسېدل** :- انتظار کول ، په طمع اوسېدل.
**منتظرین** :- (مُـنْ + تَ + ظِ + ري + ن)(ع ، اس ، ج) د منتظر (اسم) جمع ده ـ انتظار کوونکي.
**منتظم** :- (مُنْ + تَ + ظَمْ)(ع ،اس ، مف ، مذ ،مو ـــ ه) منظم شـوے ، پـه ترتیب کړے شوے ،په ترتیب کښې کښېښودے شوے.
**ــ کول** :- منتظم جوړول ، انتظام سپارل چاته.
**منتظماً** :- (مَـنْ + تَ + ظِ + مَنْ)(ع ، تـر ، تف) د انتظام پـه طـور ، د انتظام کوونکي په ډول.
**منتظمه** :- (مُنْ + تَ + ظِ + مَ)(ع ، صف ، مو) د ,, منتظم ،، تانیث دے.
**منتظمي** :- (مُنْ + تَ + ظَ + مِيْ)(عف ، تر ، صف) انتظام سره تعلق لرونکے ، انتظام ته منسوب.
**منتظمیت** :- (مُنْ + تَ + ظِ + مِيْ + یَتْ)(ع ، اس،مذ) انتظام کونه ، انتظام.
**منتظمین** :- (مُنْ + تَ + ظِ + مِيْ + ن)(ع ، اس ، ج) د منـتظم (اسم)جمع ده ـ انتظام کوونکي.
**منتفع** :- (مُنْ + ت + فِعْ)(ع ، اس ، صف ،مذ ، مو ـــ ه) نفع اخسـتونکے ، ګټـه اخستونکے ، فائده حاصلوونکے.
**منتقل** :- (مُ + نْ + تَ + قَ + لْ)(ع ،اس ، مذ ، مو ـــ ه) هغـه چـې ځـاے ، مکان ئې بدل کړے وي ـ د یو ځاے نه بل ځاے ته بدل کړے شوے.
**ــ الیه** :- (ـــ ا / اي + لي + ه)(ع ، تر ، اس) هغه سړے د چا پـه نوم چې څهٔ څیز منتقل شوے وي.
**ــ کول** :- د یو ځاے نه بل ځاے ته بدلول یا وړل.
**ــ کېدل** :- د یو ځاے نه بل ځاے ته بدلیدل یا وړلے کېدل.
**منتقل** :- (مُنْ + تَ + قِلْ)(ع،اس،صف، مذ ، مو ـــ ه) انتقام کـوونکے ، د یـو ځاے نه بل ځاے ته تلونکے ،ځاے بدلونکے ،ځاے یا کور بدلوونکے.
**منتقلي** :- (مُنْ + تَ + قَ + لِيْ)(ع ، ف ، تر ، اس ، مو) د یـو ځـاے نـه بـل ځاے ته تلنه یا وړلے کېدنه ، بدلي ، بدلون ، تبدیلي.
**منتقلول** :- (مُن + تَ + قَ + لَ + ول)(و ـــ منتقل کول).
**منتقلېدل** :- (مُن + تَ + ق + لې + دل)(و ـــ منتقل کېدل).
**منتقم** :- (مُن + تَ + قِمْ)(ع ،اس ، صف ، مـذ ، مو ـــ ه) انتقـام اخسـتونکے ، بدل اخستونکے ،د بدو په بدل کښې بد کوونکے ، د بدو سزا ورکوونکے.
**ــ حقیقي** :- (ـــ (م) + ح + قي + قي)(عـف ، تـر ، اس ، مـذ ) د الله پـاک یوصفتي نوم دے ـ اصل انتقام اخستونکے.
**منتوال** :- (مَنْ + ت + وا + ل)(اس ، مع) د ماموزئیو (یار محمد زئیـو) څانګـه ده ـ قبلیز زېمخت دي ـ بګزي د دویې یوه څانګه ده.
**منتونو** :- (م / مي + نْ + نَ + تُو + نو) د ,, منتونو ،، بـدل شکل چې د مغبـره ؤ تورو سره راځي ـ لکه : په منتونو مې رضا کړ...
**منتونه** :- (منْ + نَ + تُو + نَ) د ,, منت ،، ،جمع ده ـ زارۍ ، په عاجزۍ سره خواستونه.
**ــ کول** :- زارۍ کوي ، عاجزۍ سره سوال کول ،عاجزۍ سره غوښـتنه کول.
**منتهول** :- (منْ + تَو + ل)(انګ ، اس ،جم) یو دوائي ـ چې د نعناع (پودینې) نه جوړولے شي ـ د پودینې ست.
**منتهٰي** :- (مُنْ + ت + ها) انتها ، اخري حد ،خاتمه ، انتها تـه رسېدلے ، انجام ته رسېدلے ، پوره ، کامل.
**ــ کول** :- انتها کول ، انجام ته رسول ـ ختمول پوره کول.
**ــ کېدل** :- انتها کېدل ، انجام ته رسېدل ، ختمېدل ، پوره کېدل ـ رسېدل

شېخه تهٔ چې اشارت کړې خپل عفاف ته
منتهٰي شوې د صوفیانو و اوصـــاف ته (حافظ)

**منتهي** :- (مَنْ + تَ+هي)(ع ،اس ، صف) انتهاته رسېدونکے ، اخري حد ته رسېدونکے ـ کامل ، لایق ، عالم فاضل.
**منټ** :- (مَ + نَ + ټْ)(اس ، مذ ، ج ـونه) زړګے ، د ,, من ،، (په معنٰی د زړهٔ)

تصغیر دے۔

سر و مال ننګ وناموس به دې عشق دل کا

اسان نـــهٔ دے دغـــه کـــار زما منتـــه (حسین)

**منټ** :- (م + ن + ټ) (انګ ، اس ، مذ ) یاداشت ، روداد ۔

**منټ** :- (م + نټ) (انګ ، اس ، ظ ، مذ ، ج ـ ونه) دقیقه ، شپېتهٔ سیکنډه۔
د وخت یوه وړه شان حصه ، د شپېتو منټونو نه یوه ګهنټه جوړېږي۔

**په ـــ کښې** :- (پ ـــ کښې) د یو منټ په وخت کښې۔ (محاورتاً) ډېر لږ شان وخت کښې۔ په ان فن کښې ، د سترګو په رپ کښې۔

**منټل** :- (مِنْ + ټل) (انګ ، صف) دماغي ، دماغ سره تعلق لرونکے۔ لکه
: منټل هسپتال۔ پاګل ، لېونے۔

**منثور** :- (مَنْ + ثُو + ر) (ع ، اس ، مذ ) هغه مرغلره چې لاسُورے په کښې نهٔ وي شوے۔ ناسفته مرغلره۔ ادب کښې په نثر کښې ، نثري ، نثر۔

**ـــ ادب** :- (ـــ ا + دب) (عف ، تر ، اس ، مذ ) هغه ادب چې په نثر کښې وي۔

**ـــ شعر** :- (ـــ شع + ر) (عف ، تر ، اس ، مذ ) هغه شعر چې نثر وي۔
هغه نثر چې د نظم د تعریف نه غورځېدلے وي او د شعر په زمره کښې راځي۔

**منج** :- (مَ / مُ + نْ + ج) (اس ، جم) یو قسم بوټے دے چې نرۍ نرۍ ریشې لري او بوټ ، پرې ترې جوړېږي۔ یو غرئیز بوټے دے چې سپین ګلونه کوي۔ د کهي بوټي ته هم وائي۔ چې قلمونه ترې جوړېږي ۔

**منج** :- (م + ن + ج) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) راټول شوے ، د یخنۍ نه راکوټې شوے۔

**منجاري** :- (مَن + جا + ري) د ,, منجاري ،، جمع ده ۔ د ,,منجاري ،، بدل شکل چې مغیرهٔ تورو سره راځي۔

**منجارے** :- (مـن + جـا + رے) (اس ، مـذ ، ج ـــ ري) بنجارے ، واړهٔ واړهٔ څیزونه خرڅوونکے ، عموماً هغه واړهٔ واړهٔ څیزونه چې د زنانهٔ پکارېږي۔

**منجانب** :- (مِنْ + جا + نب) (ع ، تر ، تف) د ,, من ، ,او ,,جانب ،، مرکب دے د طرف ، له طرفه ، د طرف نه د ۔۔۔ د چیټو یا رقعو خصوصاً دې کښې د رقعو کاروونو په اخر کښې د نوم نه بره لیکلے شي۔

**منجاور** :- (مَنْ + جا + ور) (اس ، مذ ، ج ـــ ان) د کوم زیارت یا د خانقاه خادم ، مجاور۔

**منجاوره** :- (م + مَنْ + جا + ور) (اس ، مو ، ج ـ رې) د ,, منجاور ،، تانیث۔

**منجر** :- (مُن + جَر) (ع ، صف) رانښکلے شوے ، کشیده۔

**منجر خېل** :- (مَن + جَر + خې + ل) (اس ، مع) د داؤد خېلو څانګه ده۔ (داؤد خېل ، ناصر ) غلزي دي۔

**ـــ کېدل** :- رانښکلے کېدل ، کشیده کېدل ۔لکه : په فکر منجر کېدل۔ منتج کېدل ، ختمېدل۔لکه : کار په صلحه منجر شهٔ۔

**منجرکے** :- (مَنج + ره + کے) (اسم ، واحد ، مذ ) بنائسته کټ۔

**منجره** :- (مَن + جه + ره) (اسم ،واحد ، مونث) کلۍ ،غوټۍ، شګوفه ، جمع ، منجرې۔ (م ـ سنسکرت )۔

**منجرے** :- (مَنْ + ج + رې) (اس ، مذ ) ناسپړدې غوټۍ ، هغه کلۍ چې لا شګفته شوې نهٔ وي۔ بنده غوټۍ۔

کـــه هر څـــو دي د خزان چپو وهلي

په ارزو د منجرو د بوستان خوښ یم (ف س)

**منجغې** :- (مَنْ + ج + غې) (اس ، مذ ، ج ـــ غي) د زنانه د قُبل په مېنځ کښې د وړوکي چارخولک په شان غوښه۔ د کوس پانګې۔

**منجقې** :- (مَن + ج + قې) (و ـــ منجغې)۔

**منجل** :- (مُنْ + جَلْ) (صف ، مذ ،مو ـ ه) تاؤ شوے ، رانغښتے شوے ، جنجال شوے۔ (محاورتاً ) پېچیده ، ګران۔

**منجلاب** :- (مَنْ + جَ + لا + ب) (عف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د ګنده یا سخا اوبو د جمع کېدلو ځاے ، ډنډ۔

**منجلـه** :- (مَ + مَـنْ + ج / جَ + لَ) (صـف ، مـو ، ج ـــ لـې) تـاؤ راتـاؤ شـوے ، رانغښتے شوے۔ پېچیده شوے۔ د وښو یا د زړو کپړو راتاؤ کړې کړې شان ، چې د منګي وغېره په سر کولو په وخت په سر ږدي ۔ د غنمو د بوټو په خپله کښې یو بل سره الوول کېدل ، دا د فصل د برکت او ښېرازۍ نخښه ګڼلے شي۔

**ـــ کول** :- تاؤ راتاؤ کول ، پېڅل ، پېچل ، په تاؤولو سره منجیله جوړول ۔ د منجیلې په شکل کښې راغونډول۔

**منجلس** :- (مَنْ + ج + لِسْ) (و ـــ مجلس)۔

**ـــ کول** :- په خپله کښې خبرې اترې کول ،ګپ شپ لګول۔ سندرې وئیل ، په مجلس کښې سندرې وئیل۔

**منجلسي** :- (مَـنْ + ج + لِ + سِيْ) (اس ، مـو ، ج ـــ ان) مجلس کـوونکے ، سندرې ویونکے سندر غاړے ، ډم۔

**منجم** :- (م + نَجْ + جَمْ) (ع ، اس ، مذ ، ج ـ ان / ین) نجومي ۔ د ستورو د علم پوهـان ، ستاره شـناس ، د ستورو پـه ذریعـه د راتلـونکي وخت حـال معلوموونکے ۔د علم نجوم ماهر۔

**منجمـد** :- (مُ + مُـنْ + جَ + مِـدْ) (ع ،صـف ، مـذ ، مو ـ ه) واوره کېـدونکے ، جماوېدونکے ۔یخ بسته ، کنګل ، ورغلې اوبهٔ۔

**بحر ـــ جنوبي** :- (بَحْ + ر ـــ جُ + نُو + بي) (اس مع) یو سمندر دے ، چې د زمکې سهېل یعني طرف ته دے او د کال اکثر موده کښې کنګل وي۔

**بحر ـــ شمالي** :- (بَحْ + ر ـــ شُ + مَا + لِي) (اس ، مع) یو لوے سمندر دے ۔چې د زمکې قطب یعني شمال طرف ته دے۔او اکثر واوره اوسي۔

**ـــ کول** :- واوره کـول ، د مـائع څیـز د واورې پـه شـان کلکـول ، یـخ بسته کول۔

**ـــ کېدل** :- واوره کېدل ، د مائع څیز د واورې په شان کلکېدل ، یخ بسته کېدل ، جماوېدل۔

**منجمله** :- (مِنْ + جُمْ + لَ) (ع ، تر ، تف) په ټولو کښې دا ۔۔۔ په جملهٔ کښې دا چې ۔۔۔ چې مذکوره جز یا یوه برخه وي نو د ,,کل ،، دپاره ئې من جمله یا منجمله یادولے شي۔لکه کلاس یا جماعت کښې د منجمله شلو کسانو نه دوه پښتانهٔ نهٔ دي۔یا د منجمله ځلوېښتو مرلو نه د شلو مرلو د خرڅ خبره یا نور۔

**منجنیق** :- (مَنْ + ج + ني + ق) (ع،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) یوه جنګي اسلحه ده چې کاڼي یا د بارودو د هور بلې لمبې د دښمن قلا ته ورغورځوي۔

په هر لور مې غورځوي په سر لګېږم

زمانې کړم لکـــه سنګ د منجنیق (خوشحال)

د قلعه ماتولو دپاره پخوانۍ زماني یو مشین چې درانهٔ کاڼي به ئې پرې غورځول۔مچوغنه ، مچوغڼه۔

**منجنیقي** :- (مَن + ج + ني + قي) (عف ، تر ، صف) منجنیق سره تعلق لرونکے ، منجنیق ته منسوب۔

**منجو** :- (مَنْ + جو) (اس ، مع) د یو سرې نوم چې یو مشهور متـل ورپورې جوړ شوے دے ۔څینې وائي چې دا د یوې ښځې نوم دے۔

**د ـــ زامن** :- (د ـــ زا + مُنْ) (پ تر ، اس ، ج ) د منجو (چې د یو سړي یا د یوې ښځې) شپږ زامن ۔چې شپږ واړه بې کاره وو ۔ مجازاً بې کاره او نا اهله زامن چې ګڼې دي خو د هېڅ کار نهٔ دي۔

**منجور** :-(مَنْ+جَ+ور)(اس ، مذ ، ج ـــان) دکوم زیارت یا د خانقاه خادم ، مجاور.

**منجوره** :- (مَنْ+جَ +ور) د منجور „تانیث ،، دے.

**منجوړا** :- (مَنْ+جو +ړا)(اس ، مذ ،ج ـــګان) نامرد ، هیجړا ، بېکاره .دغه ټکے د خلیلو په سیمه مرجوړا وئیلے شي.

**منجه منجه کېدل** :- بوخ بوخ کېدل.

**منجیټ** :- (مَنْ+جي + ټ)(اس ، جم) د یو قسم دارو نوم دے چې په عربۍ کښې ورته دم الاخوین وائي.(ف : خونِ سیا و شان).

**منجیله** :- (مَنْ+جي +لَ)(اس،مو،ج ـــلې) تاؤ راتاؤ ، نغښتے ، پېچیده کړے، د وښو یا د زړو ریښانګو نه په تاوؤلو سره جوړه کړې کړۍ چې څۀ دروند پېټے (لکه پنډ یا منګے) په سر کښېښودلو په وخت د سر د پاسه ږدي .نغاړۍ

**بیړۍ ته ـــــ وهل** :- د خپل طاقت یا د حېثیت نه ډېر اوچت کار ته ځان سمول.

**ـــــ کول** :- د وښو یا د بل کوم څیز نه په راتاؤولو سره د منجیلې شکل جوړول.رانغښتل. لکه پېغلې خپله لوپټه منجیله کړه او منګے ئې په سر کښېښود.

**منجېدل** :- (مَنْ+جې + دل)(مص) بدن تاوؤل راتاوؤل . یا بدن له رفقي حرکت ورکول .د خوشحالۍ نه ترپکې وهل ، او بدن کله ښکته او کله پورته کول.یا په چا پورې ځان مخښل رامخښل.

ما بې درده توسني کړه منجېدلم
عـاقبت ئـې په کمند وځکېړلم (خوشحال)

مخکښې وروستو حرکت کول .جنبش کول ، ځاے په ځاے حرکت کول ، هر وخت مخې ته کېدل.

**منجۍ**:- (من +جۍ) د „منجے ،، تانیث دے.

**منجے** :- (مُ/مَنْ+جے)(اس ، مذ ، موـــجې) چیت پوزے ، پیت پزے ، چیتا ، چیتے.

**منجے** :- (مُنْ+جے)(صف ، مذ ، ج ـــ جي) بې لکۍ ، هغه چې لکۍ ئې پرېکړې شوې وي.بونجے ، بونډت ، بونډے.

**منځلے** :- (مَ+ن +ځ +لے)(پ تر،اس،مذ) په مېنځ کښې راتلونکے ، مېنځګړے ، خپل سره خپل شي ،منځ لیانو به مخ تور شي.(متل)
یا خپل به سره خپل شي پردي به په کښې غُل شي.

**منځ** :- (مَ+مَنْ+ځ)(اس،مذ ، ج ـــ ونه) مېنځنۍ حصه ، درمیان ، وسط ، درون ، وقفه. (ښکنځل) کُس ، فرج ، (محاورتاً).

**ـــــ ته رالوئېدل** :-

**ـــــ ته رادانګل** :- د چا خبره یا معامله کښې راګډېدل یا راشامېدل. دخل اندازي کول.

**ـــ کښې خاښے ماتول** :-د چا په مېنځ کښې دخل کول ، د چا په کار یا معامله کښې ګوتې وهل .لکه : فلانے څوک دے چې زمونږ په مېنځ کښې خاښے ماتوي.

**پښه په ـــــ ایښودل** :-

**پښه په ـــــ کښېښودل** :- د چا په معامله کښې دخل ورکول . ګوتې وهلل، کار لرل .

**په ـــــ کښې راتلل** :- دخل کول ، درېم ګړتوب کول ، خلاصے کول . د چا ذمه واري اخستل.

**په ـــــ کښې رادانګل،دچا** :- د چا دخبرو په دوران کښې بې موقعې او بې ضرورته خپله خبره وړاندې کول .د نورو په خبرو کښې بې موقعې ورګډېدل ، یا بې ضرورته ورشاملېدل.

**په ـــــ مېدان کښې** :- ښکاره ، په څرګنده ، د ټولو په وړاندې.

**په دې ـــــ کښې** :- (پ + دے ـــــ کښې) په دغې دوران کښې ، په دغه وخت کښې.

**منځ ګنډ** :- (مَنْ+ځ +ګن +ډ)(په، تر،اس،مذ ،ج ـــونه) د چت لرګے ، برګه ، ډاګه ، شهتیر ، بَشْ.

**ـــــ ګنډ،دعلي خېلو** :- (پ تر ، اس ، مذ) وائي چې یو علي خېل چا اشنا له یو منځ ګنډ لاړ ، هغه د کوټې په چت کښې اولګولو، دۀ علي خېل به اکثر دغې اشنا کره راتۀ ، شپې به ئې ورسره تېرولې او خپل دغه منځ ګنډ به ئې وریادوۀ.اخر هغه اشنا ئې تنګ شو .چت ئې وسپړۀ دغه تیر ئې ترې راوویست او چې دغه علي خېل راغے نو ورته ئې اووئیل چې دا منځ ګنډ دې یوسه.او ما معاف کړه ددې نه متل شۀ.
دا متل تش علي خېل پورې نۀ دے وئیلے شوے بلکې ځینو داسې قسم نورو خلقو په حقله هم وئیلے شوے دے .لکه د غرځنۍ یا کلیوال چُوکه او داسې نور.

**منځالۍ** :- (مَنْ+زا +لۍ)(اس ، مو) مېنځنۍ ګوته ، د شاغُت ګوته. مېنځه ګوته.

**منځغرے** :- (م + مَن +ځ +غ +رے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــري)د دوؤ غرونو تر مېنځه لار.دره.

**منځکوره** :- (م + ن + ځ + کو + رَ)(پ تر ، صف) درمیانه ، وسطي ، متوسط.

**منځکه** :- (مَنْ + ځ + کَ)(و ـــــ مځکه یا ځمکه).

**منځکي** :- (مَنْ + ځ + کي)(اس ، جم) مغز (د بادام وغېره).

**منځګړتوب** :- (مَن + ځ + ګ + ړ + تو+ب)(پ تر ، اس ، مذ) درېم ګړ توب ، میان جي توب ، ثالثي ، مصنفي.

**ـــ کول** :- درېم ګړتوب کول ، میان جي توب کول ، ثالثي کول ، غېر جانبدارانه فېصله کول.

**منځګړو** :- (مَ+ن +ځ +ز + ګ + ړو) د „منځګړي ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.لکه : دا د منځګړو فېصله ده.

**منځ ګړي** :- (مَن +ځ +ګ +ړي) د „ مېنځګړے ،، جمع ده .د „ منځګړے ،، بدل شکل چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ توب** :- (ـــــ تو + ب)(و ـــ منځګړتوب).

**منځګړے** :- (مَنْ + ځ + ګ + ړے)(پ تر،اس، مذ ،ج ـــ ړي) په مېنځ کښې راتلونکے ، درېم ګړے ثالثي کوونکے ، غېرجانبدار .

**منځګوړ** :- (م + ن+ ز + ګو + ړ)(و ـــ منځګړے).

**منځګوړے** :- (من + ځ + ګو + ړے)(صف) درمیانه ، د متوسطې درجې.

**منځل** :- (مِنْ+ځل) (مص) وینځل ، مینځل ، په اوبو سره صفا کول. د نورو الفاظو دپاره و ـــ مینځل).

**منځ میانه** :- (مَنْ + ځ + ما + یا + نه)(اس ، مو) د ذي قعده میاشت.

**منځنۍ** :- (مَنْ + ځَ + نۍ) د „منځنے ،، تانیث.

**ـــــ اېشیا** :- (ـــ اے + ش + یا)(پ تر،اس مع) د اېشیا د براعظم د مینځ د برخې ملکونه ، وسطي اېشیا هم ورته وئیلے شي.

**منځنے** :- (مَن +ځَ + نے)(اس صف ، مذ ،ج ـــنې) درمیانه ، د مېنځ ،وسطي ، مېنځ سره تعلق لرونکے.

**ـــــ شرق** :- (ـــــ ش + ر + ق)(پ تر،اس، مع) د شرق د مېنځنۍ برخې علاقه یا ملکونه ، شرق اوسط.

**منځوله** :- (مَنْ+ځو +لَه)(اس ، مو ، ج ـــلې) جاله، اشیانه ، وړه کړنډۍ چې ګلکار پرې نرے کار کوي.

**منځومې** :- (مَنْ + ځو + مې)(اس، ظر، مذ ،ج ــــ مي) د مېنځ ، درميان ، وسطي ، لکه : منځومې ورور.

**منځوی** :- (مَنْ + ځ + وی)د "منځوے"، تانيث دے.

**ــــ خور** :- (ــــ خو + ر)(پ تر ، اس ، مو) د مشرې او کشرې خور په مېنځ کښې خور.

**منځـوے** :- (مَـن + ځ + وے)(اس ، صـف ، مـذ ) درميانـه ، وسـطي ، د مېنځ .

**منځه**:- (مَن + ځه)(اس ، مو ، ج ــ ځې) د "منځ"، تانيث .دمنځ بدل شکل دے چې مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ــــ گوتـه** :- (ــــ گـو + تَ)(پ تر ،اس،مـو،ج ــــ تـې) د شـهادت گوتـه ، د مسواکې گوتې سره جوخته گوته ، چې په ټولو گوتو کښې اوږده وي . مېنځه گوته وئيلے شي.

**تر ــ** :-(تر ــ) په مېنځ کښې لکه : له هغې بلا مه ويرېږه چې شپه ئې تر منځه وي.يا تر مېنځه وي.يا "تر مېنځه پردے سرے خراب ، زخمي ، تاواني کړو ،، .

**تر ــــ کېدل** :-دربم گړتوب کول،فېصله کول .جنگ جگړه ختمول ، ثالث کېدل.

**له ــــ ورکول** :- له سره ورکول ،د تقسيم نه وړاندې څۀ برخه (چاله) ورکول.

**له ــــ وتل** :- لاتعلقه کېدل ، د تر مېنځه کېدلو متضاد دے.

**له ــــ ويستل / وباسل** :- لاتعلقه کول ، تعلق شلول (چاسره).

**منځه** :- (مَنْ + ځه)(اس ، مو، ج ــــ ځې) د کړدئ د مېنځ ستن يا بانس.

**منځه**:-(مَنْ + ځه (اس ، مـو ، ج ــــ ځې) د يـوې ونـې نـوم دے .لمنځـه ، اوبښته.

**منځی** :- (مَنْ + ځی)(اس ، مو) د غر په لمن يا په يو اړخ کښې هواره شان يا لږ روږه زمکه. مېنځ سره تعلق لرونکے، منځينه.

**منځيـالے** :- (مَـنْ + ځ + يـا + لے)(اس ، مـذ ، ج ــــ لـي) د مېـنځ سـړے ، د مېنځ برخې سره تعلق لرونکے.

**منځېدل** :- (مَنْ + ځې + دل)(مص)(و ــــ منجېدل).

**منځينه** :- (مَن + ځي + نه)(پ تر ،صف، مـو) د مېنځ ، منځ سره تعلق لرونکے ، منځی.

**منچدن خېل** :- (مَنْ + چ + دن + خې + ل)(اس ، مع) د ناصرو څانگه ده .

**منچل** :- (مَنْ + چـل)(اس ، واحد ،مذ) د چينجي يو قسم دے چې شوخ سور رنگ لري ، قرمز.

**منحـرف** :-(مُـن + ح + رف)(ع ، اس ، صـف ، مـذ ،مو ــــ ه) انحـراف کـوونکے ، گرځېـدونکے، کـوږ شـوے ،خـم شـوے، کوږ ، بغـاوت کـوونکے ، بـاغي ، سرکښـه .هغـه چې مربع ، مسـتعطيل وغېـره نـه برگشـته شـوے وي يعنـې د څلـورو بازوگـانو (ضـلعو) هغـه شـکل چې څلور واړه بازوگان ئې سره برابر نۀ وي.

**ــــ کېدل** :- د خپلې خبرې يا وعدې نه گرځېدل يا اوړېدل .منکر کېدل . باغي کېدل.

**منحصر** :- (مُن + ح + صر)(ع ، صف ، مذ ،مو ــ ه) په حصار کښې راغلے ، راگېر شـوے ،راگېر ، احاطه شـوے .محـدود ، موقـوف ، مشـروط ، وابسته، سره تړلے.

**منحصر** :- (مُن + ح + صر)(ع،اس ،صف ، مذ ، مو ــ ه) حصـار کـوونکے ، راگېروونکے ، انحصار لرونکے ، اړه لرونکے.

**منحط** :- (مُن + حَط)(ع ، صف ،مذ ، مو ــ ه) پرېوتلے ، ښکته شوے ، په نرخ يا قيمت کښې کم شوے.

**منحل** :- (مُن + حَلْ)(ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) حل کېدونکے لکه مالگه يا چيني چې اوبو کښې حل شي. د فوج وغېره نه پېتې بيلټ کوزوونه.

**ــــ کول** :- تحليل کول ، ذره ذره کول ، ورکول تس نس کول ، د فـوځ وغېـره تنظيم ختمول ، يو خوا بل خوا پره کول.

**ــــ کېدل**:- تس نس کېدل ، بې نظمه کېدل ، خوور وور کېدل.

**منحني** :- (مُنْ + ح + نيْ)(ع ، صف) يو طرف ته کوږ شوے ، خم شوے ټيـټ شـوے ، خميـده ، کـوږ .کـوبړے ، کـړې ملاوالـه .نـرے نـروچکے ، مانده ډنگر.

**ــــ خط** :- (ــــ خ + ط)(عف ، تر ،اس ، مذ ، ج ــ ونه) کوږ خط ، خميده خط ، (د مستقيم يا د نيغ خط په مقابله کښې).

**منحوت** :-(مَنْ+حُو + ت)(ع، صف،مذ ،مو ــــ ه) تراشلے شوے ، تراشلے.

**منحوس** :- (مَنْ حُو + س)(ع ، اس ، مف ، مذ ،مو ــ ه) نحوست لـرونکے ، سپېرۀ ، بدبخته ، خراب ، مکروه.

**منحول** :- (مَن + حو+ل)(ع ، صف) هغه شعر چې اصلاً د بـل چا وي او بغېـر د څۀ بدلونه په خپل نوم مشهور کړے شي.

**مند**:- (مَنْ + د)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د سېلاب د تېرېدلو لار ، شېله.

**مند** :- (من + د)(لاحقه) د فارسي لاحقه ده .په پښتو کښې هم استعمالېږي. نـورو الفـاظو سره لگي او د صـاحب ، والا يـا دار معنې ورکـوي . لکـه : دولتمند ، مال واله يامالدار .(په پښتو کښې ئې تلخيص ,,من،، هم ډېر استعمالېږي).

**مند** :- (من + د)(اس ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) هغه سړے چې ئې د زين په شان وي .چيت پوزے يا چيتے.

**مندازئ** :- (مَن + دا + زئ)(اس ،مع) د دولت زئيو څانگه ده .(دولت زئ < ماليزئ) بنېروال دي.

**منداړو** :- (مَـن + دا + ړو)(۱) د لرگـي نـه جـوړه کـړې شـوې يـوه الـه چې شوملې پرې کولے شي. د پلاسټک د ايجاد نه پس دا هر نـاپ کښـې د پلاسټک نه هم جوړولے شي .دا د مناسب يـا ضـرورت مطابق غټ او اوږد لرگي يا پلاسټک نه جوړولے شي چې لاندې سر کښـې ئې څلـور پـرې لگېـدلي وي پـه کومـو چـې د تـاوؤلو پـه ذريعـه ماسـتۀ وهلـے اوشاربلے شي . کوچ بېلولے او شوملې دوېي يا گول ماگول غټه کټوې کښـې پرېښـودلے شي (۲) غـټ منـداړو / منـداڼو بـه د څرمنـې پـه پلنـه تسمه تاوؤلے شي او وروکے په دواړو لاسو خپېږو هم تاوېدلے شي .يـو قسم بوټے دے .د نارنج غوندې اوږدې خو لږې نرۍ پاڼې ئې وي .پـه لختو ولاړ وي .بند کي بند کي تنه ئې وي .زهـرژن وي .چې ددې اوبـۀ ئې په بدن اولگي نو پولۍ کېږي او لکه د مرچکي ئې سوځوي .پـول پولک هم ورته وائي .(۳) ځينې علاقو کښې يو زهرژن وابښۀ تـه وئيلـے شي کوم چې په جوارو کښې را اوځي .په ځينې علاقـو کښـې پـه غنمـو کښې او ددغه وخت په نورو فصلونو کښې هم را اوځي.

**منداڼو** :- (مَن + دا + ڼُو)(اس،مذ ، ج ــ گان)(و ــــ منداړو).

**منداغ** :- (مَن + دا + غ)(اس ، جم) يو قسم وابښۀ دي .چې د اعصابو د درد دپاره د دارو په طور استعمالولې شي.پاڼې ئې يشوي او ځنبکي ئې.د مالش دپاره هم پکارولے شي.

**مندته** :-(مَـن + د + تَ)(اس ، مـو ، ج ــــ تـې) د خورمـانۍ (خوبـانۍ) هغـه قسم ته وائي چې ځنگلي وي قلمي شوې نۀ وي .بر سوات کښې ورتـه "اشاړي،، هم وئيلے شي.مېوه ئې اکثر وړه او د هډوکي گيټکي مغز يا چکۍ ئې ترخه وي.

**مندر** :- (مَن + در)(هـ ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) کور ، محل ، مـانۍ د هندوانو د

عبادت ځاے.

**مندراشي كور** :- (من + د + را + شي + كو+ر)(اس ، مع)د ,,سروه ،، ځانګه ده . (سروه، بشاخېل، كمالي ،حليم زئ) مهمند دي.

**مندراني** :- (من + د + را + ني)(اس ، مع) دنو دهاني ځانګه ده.پني دي.

**مندرج** :- (مُـن + د + رَجْ)(ع ،اس،مـذ ،مو ـــــه) درج شـوے ، هغـه چې اندراج ئې شوے وي.ليكلے شوے.

**منـدرجات** :- (مُـن + د + رِ + جا + ت)(ع ، اس ، ج)د ,,مندرجه ،، جمع ده . درج شوي څيزونه، ليكلي شوي څيزونه ، (رقم ، اعداد يا عبارتونه).

**مندرجه** :- (مُن + در + جه) د ,, مندرج ،، تانيث دے.

**مندرک خېل** :- (مَن + د + رک + خې + ل)(اس ، مع) د فېروز خېلو ځانګه ده . (فېروز خېل ، دولت زئ) اوركزي دي.

**مندرو** :- (من + د + رو)(اس ، مذ) چنه ، ددېوال دپاسه يا د چت په غاړه جوړه شوې موركه. رپ ، بنېره.

**مندروټې** :- (مَن + د + رو+ ټې)د ,,مندرې ،، تصغير دے.

**مندروټے** :- (مَن +د+ رو+ ټے)(صف، مذ ، ج ، ټې) د ,, مندرے ،، تصغير دے.

**منـدره خېـل** :- (مَـن + د + ره + خې + ل)(اس ، مـع) د اشـوخېلو ځانګـه ده . (اشوخېل ، ادم خېل) افريدي دي.

**مندره خېل** :- (ددغه) (اس ، مع) د دلدار خېلو ځانګه ده. (دلـــدار خېـــل ، محمد خېل، كتيه خېل ، حسن خېل ، ميتا خېل) افريدي دي.

**منـدره خېـل** :- (ددغـه)(اس ، مـع) د دردي خېلـو ځانګـه ده . (دردي خېـل ، مشتي) د اوركزوئيو همسايه دي.

**مندرې** :- (مُن + د + رې)(ه ،اس ،مو) نارينه والې چې خاص قسم جوړه وي اوسپكه وي او وړه وي. د غوږ يو كالے دے چې د څو خاصو خاندانونو هلكان يا سړي ئې اچوي اوس ئې ددغه خاندانونو كسان هم ډېره نۀ اچوي .نن سبائې زنانه هم استعمالوي خو دا لويه وي).

**مندرے** :- (مَنْ+د + رے)(صف ، مـذ ، ج ـــــ ري) هغه سړے چې قد ئې وړوكے وي.پست قد ، چيت يا لنډې يا ټيرې او ټيټے هم ورته وئيلے شي.

**مندړ** :- (مَنْ+ دړ)(اس مذ ،ج ـــــ ونه) هغه غټ لرګے (ستنه يا ګرګه) چې د پاسه پرې جاله تړلے شي .هغـه غټ لرګے چې د ديوال پـه مېنځ كښې د كلكوالي دپاره لګولے شي.

**مندړزئ** :- (مَنْ+ دړ + زئ)(اس ، مع) د ,, لوانه ،،ځانګه ده.پني دي.

**مندړخېل** :- (من + دړ + خې + ل)(اس ، مع) د ايسوټو ځانګه ده .(ايسوټ ، ميان خېل) لوهانه پاونده دي .

**مندسه** :- (مُن + د+سَ)(اس،مو،ج ـــ سې) اصل ، نسل ، ذات.

هر چې داد مې هغې پسې وو

واړه ددۀ لـــــه منـدسې وو (بابو جان)

**مندسته** :- (مَن + دس + تَ)(اس،مو، ج ـــــــ تې) مولے، د چټو يا د لنګرې لرګے يا مولے.

**مندكه** :- (من + دَ + كَه)(اس ، مو، ج ـــــ كې) هغـه زياتي غوښـه چې د ښځې په فرج يا د تشو متيازو په ځاے كښې وي.

**مندكه** :- (مَن + د + كَه)(اس ، مو ، ج ـــــ كې) (۱) د بادام يا اشاړو وغېره د هډوكو مغز.(۲) ګلړ ، هنده ، مينده.

**مندكي** :- (من + د + كي)(اس ، مع) د داؤد زئيو په دريو قبيلو كښې يوه قبيله ده.د دوي درې ځانګې دي.بالوزي ، حسين زي او نېكو زي.

**مندكے** :- (مُنْ+ د + كے)(اس ، مذ ، ج) د لرګي پتركي چې په رنده يا ترښځ د لرګي اوتراشلے شي.د لرګي نه بېلې كړې شوې نرۍ نرۍ تكړې.

**مندل** :- (مُن + دل)(مص)(و ـــــ موندل).

**مندمل** :- (مُن + د + مِلْ)(ع، صف) زخم ډكېدنه ، د زخم ښۀ كېدنه.

**ـــــ كېدل** :- (زخم) ډكېدل ، زخم ښۀ كېدل.

**مندن** :- (مَـن + دَنْ)(اس ، مـع) د مـاموزئيو يـا محمـدزئيو ځانګـه ده قبلئيـز زېمخت دي.

**مندن خېل** :-(من + دن + خې + ل)(اس ، مع) د جنكي يا جانكي خېلو ځانګه ده. (جنكي خېل ،برسوليزئ ،اكوزئ) يوسفزي دي.

**مندنه** :- (مُن + د + نَ)(و ـــــ موندنه).

**مندڼ** :- (مَن + دڼ)(اس ، مع) د پښتنو يو لويه قبيله ده خو يوسفزئيو سره په ګډه يوسفزي بللے شي . (د تـرۀ او وراره اولاد دے) د منـدڼو درې غټې ځانګې دي .يعني عثمان زئ ، اتمان زئ او رجړ. ځيني خلق د فارسي په تتبع كښې مندړ ليكي.خو تلفظ له لحاظ ئې صحيح ليک مندڼ دے.

**مندڼه** :- (مَن + د + ڼَه)(اس ، مو، ج ـــــ ړې) د ,, مندڼ ،، تانيث دے.

**مندو** :- (مَن + دو)(اس ، مذ) مولے .د غوېي يا د اس د اوږې سر. دخرونو يو بيماري ده چې ملا كښې پيدا شي او بيا د زخم په شكل كښې ښكاره شي.

**مندوب** :- (مَن + دو + ب)(ع ،اس ،ج ـــــ ان / ين) نمائنده ، هغه سړے چې دكوم جماعت يا اولس د طرفه په يوه جرګه كښې شريكېږي.

**منـدوزي** :- (مَـن + دو + زئ)(اس ، مـع) د دويزئيـو ځانګـه ده .مهمنـد دي . ځيني خلق په كښې خانه بدوش دي.

**مندوزي** :- (مَن + دو + زئ)(اس،مع) د برېڅو يوه لويه قبيله ده.

**مندوخېل** :- (مَن + دو + خې + ل)(اس ، مع) د ناصرو ځانګه ده.غلزي دي.

**مندوخېل** :- (من + دو+ خې + ل)(اس ، مع) د خواجه خېلو ځانګـه ده . (خواجه خېل ، مسوزئ ، لشكرزي) اوركزي دي.

**مندوخېل** :- (مَنْ + دو + خې + ل)(اس ، مـع) د پښـتنو يـوه لويـه قبيلـه ده . د غورغشت نيكۀ اولاد دے.د افغانستان څخه بلوچستان تـه راغلـي وو .ددې دوه لـوے ښـاخونه دي يعنـي هـادي زئ (يا شېخ) او حېدر خېـل .هـادي زئ اوس ډېر لږ پاتې شوي دي او د حيـدر خېلـو اهمې ځـانګې دادي: مميـزئ ، دوت خېـل ، ارميـه خېـل ، سـوهن خېـل ، اكاخېـل ، بائےخېـل ، عيسـىٰ زئـي ، جـاتي خېل،ناريزئ،كـاريزئ ، منديزئ ، خوجک زئ ، حمزه خېل او كـاريګران .د ژوب پـه علاقـه كښې د دوېي ډېر كلي دي.

**منده** :- (مَن + ده)(هـ، صف،مذ) بد ، خراب.

په قسمت نصيب راځي يا علي خان ته

ازلي برخه څوک چنګه وي څوک منده (علي خان)

**مندي** :- (مَنْ + دي)(اس،مو) د غشو د كښېښودلو كڅوړه ، غشخولے.

**منديا** :- (مَنْ + د + يا)(اس ، جم) دغنمو غوبل.

**منديزي** :- (مَن + دې + زئ)(اس ،مع) د لهر زئيو ځانګه ده.موسىٰ خېل دي.

**منديزي** :- (مَن + دې + زئ)(اس، مع) د عيسىٰ خېلو ځانګه ده .تركاڼي دي.

**منديزي** :- (ددغه)(اس ، مع) د حېدر خېلو ځانګه ده.مندوخېل دي.

**منديزي** :- (ددغه)(اس ،مع) د ,, ناصر ،، ځانګه ده غلزي دي.

**منديزي** :- (ددغـه)(اس ، مـع) د ډوډا زئيـو ځانګـه ده . ډوډازئ، نوكـه زئ ، لهر زئ) موسىٰ خېل دي.

**مندېل** :- (مَنْ + دې + ل)(ه ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) پټكے ،دستار ،خاص قسم پټكے چې چارخانه وي.يا د زركارۍ كار په كښې شوے وي.

چـــا د سر د پـــاسه سپُور منديل تـــړلے

ځيني هسې خوار حېران ګرځي سرتوري (خوشحال)

**مندے کھول** :- (مَنْ + دے + که + هو +ل)(اس ، مع) د بابړو یوه ځانګه ده.
**منډ** :- (مَنْ + ډ) (اس ،مذ ،ج ـــ ونه) د پښتو نقش ، د قدم ښاپ ، بنیاد ، د واورو په مېنځ کښې جوړه شوې لار.
**منډ**:- (من + ډ)(صف،مذ،مو ـــ ه) چپ ،خاموش ، غلے.
**ـــ خلے** :- (ـــ خُ + لے)(صف ،مذ ، ج ـــ لي) هغه چې خبرې نهٔ کوي. چپ خُلے،خاموش طبع ، بې زبانه.محاورتاً ګونګے.
**ـــ نیول** :- چا پسې تلل ، پېروي کول ، د چا لار اختیارول.
که مې ځان ځي ، که جهان ځي پرې به ئې نهٔ ږدم
مـــــا نیولے اوس د عشق د سوورو منډ دے (خوشحال)
**ـــ وهل** :- په نقش قدم تلل ، د پښو ښاپونو پسې تلل.
**منډا چغ** :- (مَنْ + دا + چ + غ) شاډینګه ، د تختې بانې چغ یو قسم د لرګي یوه اوږده تخته چې په ټټو کښېښودے شي.دواړو سرونو باندې کښېني او ښکته پورته کېږي ، انګرېزي کښې ورته (Sea Saw) وئیلے شي.
**منداس** :- (مَن + دا + س)(صف ،مذ ، مو ـــ ه) هغه ځناور چې یو ښکر ئې مات شوے وي.یو ښکرے ځناور.
**منډاؤ** :- (مَنْ + ډا + ؤ)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) برامده، برنډه ،دالان ،اربکے.
**منډاؤ** :- (مَنْ + ډا + ؤ)(اس،مذ ، ج ـــ ونه) کارخانه.
**منډاوو** :- (مَن + ډا + وو)(اس ، مذ) کپړ ، هغه تخته چې تلې پسې تړلې وي او اړولے شوے پټے پرې هواروي ماله.
**ـــ کول** :- په کپړ یا ماله باندې پټے هوارول.
**منډاویل** :- (مَـنْ + ډا + وي + ل)(اس،مـذ ، ج ـــ ونـه) منـدېل ، پګړۍ ، لـوے پټکے
**منډر** :- (مَن + ډر)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) مونډ ،د ونې ویخ.
**منډرکے** :- (مـن + ډر + کے)(اس ، مـذ ، ج ـــ کـي) د ونـو بوټـو یـا وینـو ویخونه ، مونډوان ، د ,, منډر ،، تصغیر.
**منډره** :- (من + ډر)(و ـــ منډر).
**منډکله** :- (مـن + ډ + ک + ل)(پ تر ،اس،مـو، ج ـــ لې) د وروکي غلېـل پـه شان یو څیز دے چې د واورې د ټکولو دپاره په پښو پورې تړلے شي.
**منډل** :- (من + ډل)(مص) ننه یستل ، په زور سره کوم سخت څیز پـه بـل څیـز کښې ورداخلول. ورټومبل، په زور یو څیز یا ځان یا بل ورځایول.
**منډل/مانډل** :- (مَ/ما + ن + ډل)(اس ، مع) د اتمان خېلو د اتـو ځـانګو څخه یوه ځانګه ده.د منـډلـو ځانګې دادي :- متیا ، ګډو او ډېر.
**منډلے** :- (مَنْ + ډ + لے)(اس ،مف،مذ ،ج ـــ لي) هغه څیـز چې په زورسره په بل کوم څیـز یـا ځـاے کښې ورداخـل کـړے شـوے وي .ورداخـل کـړے ، وړننه یستے ، ورټومبلے ، ورځاے کړے.
**منډلے** :- (مَنْ + ډ + لے)(اس،مـذ ، ج ـــ لي) هغه ځـاے چېرتـه چې ورکې شوې یا راګډې شوې ګډې بېلولے شي.
**منډلے** :- (مَنْ + ډ + لے)(اس ، مذ ، ج ـــ ي) د سکرو سوځېدلے لرګے.
**منډن** :- (من + ډن)(اس ، مع) د بـارک خټکو لویـه قبیلـه ده .د ټېرې پـه خـواؤ شا کښې اباد دي.
**منډن** :- (ددغه)(اس ، مع) د ګلزئیو ځانګه ده. (بارک خټک دي).
**منډنه** :- (من + ډ + نَه)(حمص) د منډل حاصل مصدر دے.ټومبنه.
**منډو** :- (مَن + ډو)(اس،مذ ،ج ـــ ونه)(و ـــ منډاؤ).
**منډو** :- (مَنْ + ډوْ)(اس،مذ) د اوښ کوهان.
**منډو** :- (مُنْ + ډُو)(اس ، مذ) د ونې وغېره جړه ، د ونې بوټي ویخ.
**منډوس** :- (مَنْ + ډو + س)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) پنډوس ، غونډسکه ، بـال ، غونډ شکل واله څیز ، ګُنبد.

**منډوس** :- (مَنْ + ډو + س)(اس،مذ ،ج ـــ ونه) لوے پټکے ، پګړۍ.
که مردي دې په دستار ده په منډوس
سکه مردي دې مبارک پرېتونه پوسه (خوشحال)
**منډوسه** :- (مَـن + ډُو + سَه)(اس،مـذ ، ج ـــ سې) د ,, منـډوس ،، تصغیر دے. پټکے ، پګړۍ.
**منډوکے** :- (مَ + نْ + ډو + کے)(اس ، مـذ ، ج ـــ کـي) د ونې وېخ چې ونـه یـا بوټے پرېکړے شي او د جړې سره جوخته برخه ئې پاتې شي .مونډ.د ونې ځانګې د پرېکولو نه پس پاتې شوې برخه.
**منډولے** :- (من + ډو + لے)(صف ، مذ ، ج ـــ لي) وړوکے ، ډولناک څیز.
**منډونکے** :- (مَنْ + ډو + ن + کے)(اس ، فا ، مذ ، ج ـــ کي) په زور یو څیز په بل څیز یا ځاے کښې ورننه یستونکے.په زور ځایوونکے ، ټومبونکے.
**منډوه** :- (مَنْ + ډ + وه)(اس، جم) یو قسم غله ده.
ږدن غوبښت کوده منډده باجره اوربشې
وریجې ئې چنې مسور مهے جوار مست (دولت)
**منډه** :- (مَن + ډه)(اس ، مو، ج ـــ ډې) ځغل،ځغلېدنه ، دوکوښښ ، سعي ، د کرکټ په لوبه کښې د یوې کربښې نه تر بلې کربښې پورې ځان رسول په هغه وخت کښې چې غونډسکې لرې وي ، لانهٔ وي راویشتے شـوے . (انګ : رن)
**ـــ تړه** :- (ـــ تر + ړه)(و ـــ منډه ترنډه).
**ـــ ترنډه** :- (ـــ ت + رن + ډ)(پ تر ، اس ، مـو ، ج ـــ ې ـــ ې) ډېر کوښښ ، ډېره سعي ، جدوجهد ډېره هڅه ، زیار ، کړابښ.
**ـــ رامنډه** :- (ـــ را + من + ډه)(پ تر ، تف) په منډه تلل او راتلل ، تګ و دو ، محاورتاً مسلسل کوښښ.
**ـــ کول** :- په تیزۍ سره تلل،په ځغل تلل ،تښتېدل ، تېښته کول.
**ـــ وهل** :- دو وهل ، ځغلېدل ،ځغل کول ،کوښښ کول ، سعي کول ، هڅه کول
**په یو(ه) ـــ** :- (پ + یو ـــ)(پ تر ،اس، مو) په یو ځغل ، داسې منډه چې په مېنځ کښې ایسارېدل یا دمه نهٔ وي، محاورتاً ډېر تیزۍ سره .په تُندۍ سره
**په ـــ تلل** :- په منډه وهلو تلل،په ځغلېدلو تلل.په تیزۍ سره تلل. محاورتاً زر تلل ، په تُندۍ تلل.
**ور ـــ کول** :- په منډه ورتلل ، ور ځغلېدل ، ځان په منډه ور رسول . زر ځان ور رسول ، بې وخت خرابولو تلل.
**منډه** :- (من + ډه)(صف ، مو) کلکه ، مضبوطه ، ټینګه.
**خولهٔ ـــ نیول** :- خولهٔ کلکه نیول ، کلکه بندول. تعویذ د خولهٔ تـه واچوې او خولهٔ ئې منډه پرې نیوله.
**منډه زۍ** :- (مَنْ + ډ + ز + ئ)(اس ، مع) د ,, سر غره ،، ځانګه ده.کاکړ دي.
**منډېل** :- (مَن + ډې + ل)(و ـــ مندېل).
په خیال خیال ئې تر یوي ، بدرې دمه خوره
د منډېل شملې پرې اېښې کور د خنـــګ (خوشحال)
**منډۍ** :- (مـن + ډۍ)(اس ، مو) دا اصلاً منډهی ده چې سرائې د مسافرو د پاتې کېدلو ځاے تـه وئیلے شي . د مال د ښاروو د خرڅولو او اخستلو ځاے ، مېله.بازار، مارکیټ.
**ـــ لګېدل** :- د غوا مېښو وغېره ښاروو بازار یا مېله لګېدل.
**منډۍ** :- (مَنْ + ډۍ)(تابع مهمل) د لنډۍ تابع مهمل دے .د لنډۍ پـه معنې کښې زور او تاکید پېدا کوي.لنډۍ د مونث صیغه ده.لکۍ پرې کړې حیوان تـه وائي.لنډۍ منډۍ.ببخي بې لکۍ ، بې لکۍ

دپاره د طنز او غصې ويستلو په توګه ،حالت كښې ور زياتولے شي - داسې جوړ خوړونكي ټكي د هر عيب ژن ټكي يا وصف سره هم دغه انداز سره راځي اوهم دغسې بې عيبه ټكو سره او اسمونو سره هم راتلے شي -غرض ئې هماغه طنز تونس لابراس ويستل دي - لكه يو سړے بل ته وائي فلاني له ډوډۍ اوكړه نو هغه ورته وائي ډوډۍ موډۍ چاله نۀ كوم -ياورته وائي لاهور ته لاړ شه -هغه ورته وائي لاهور ماهور يا لاهورونو ته نشم تللے يا نور -

**منډۍ** :- (مَنْ + ډۍ)(فعل) د ,, منډل ،، مصدر څخه د تلقين صيغه ده -لكه ,, خورۍ ،، يا ,,ليكۍ،، -

**منډي** :- (مَنْ + ډي)(فعل) ,,منډل ،، مصدر څخه د حال د واحد غائب فعلي حالت ،صيغه استمراري ، بووځي ، ټومبي-

**منډي خېل** :- (مَنْ + ډي + خې + ل)(اس ، مع) د ,,مولا، ، ښانګه ده - (مولا، ورسپن) بيټني دي-

**منډي خېل** :- (ددغه)(اس،مع) د صدا خېلو ښانګه ده -(صداخېل،اسپركا ، كالوخېل،احمد زي ،دروېش خېل) وزير دي-

**منډي خېل** :- (ددغه)(اس ، مع) د ووزي خېلو ښانګه ده -(ووزي خېل ، مهمت خېل ، اتمانزئ ، دروېش خېل) وزير دي-

**منډي خېل** :- ددغه)(اس ، مع) د مدخو زئيو ښانګه ده -(مدخوزئي ، خدرخېل ، مهمت خېل ، اتمانزئ ، دروېش خېل) وزير دي-

**منډي خېل** :- ( ددغه)(اس ، مع) د چاپليو ښانګه ده -(چاپلۍ ، موئيه، ورسپن) بيټني دي-

**منډي خېل** :- (ددغه)(اس ، مع) د ناناخېلو ښانګه ده -(ناناخېل ، تاپيائي ، تپي زاد) دوړ دي-

**منډې** :-(من + ډې)(اس ، مو ، ج) د ,, منډه ،، جمع ده - د ,, منډه ،، بدل شكل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي-

**ـــــ تړې** :- (ـــــ تر + ړې)(پ تر ،اس ، ج) د ,, منډه تړه ،، جمع ده -د ,, منډه تړه ،، بدل شكل -چې مغيره ؤ تورو سره راځي-

**ـــــ ترنډې** :- (ـــــ ت + ن + ډې)(پ تر ، اس ، ج) د ,,منډه ترنډه ،، جمع ده -د ,, منډه ترنډه ،، بدل شكل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي-

**ـــــ ترنډې وهل** :-

**ـــــ تړې وهل** :- ډېر زيات كوښښ كول ، تګ و دو كول -ډېره سعي كول-

**ـــــ رامنډې** :- د ,, منډه رامنډه ،، جمع -

**ـــــ وركول** :- ځغلول ، تښتول ، تعاقب كول ، پاره كول-

**ـــــ وهل** :- ځغلېدل راځغلېدل -تښتېدل ، كوښښ كول ، سعي كول-

**مُنډے** :- (مُن + ډے)(اس،مذ ، مو ـــــ ډي) د درميانه مناسب قد سړے ، د ښۀ كانۍ سړے چې زر نۀ بوډا كېږي -په ډېر عمر كښې هم خډلے وي نۀ راكوتې كېږي -د مضبوطې كاټۍ سړے -ډ ك پ ك منډلے اوغټلے سړے-

**منډيري** :- (مَنْ + ډې + ري)(اس ، مع) د عيدك ښانګه ده -(عيدك ، تپي زاد) دوړ دي-

**مُنذِر** :- (مُنْ + ذِر)(ع ،اس،فا ،مذ ، ج ـــان / ين) ويرولـــو والـــه ، ويره وركولو واله -پېغمبر ، چې د هغه يو كار دا وي چې كافران د اخرت د عذاب نه ويروي -د حضور پاك صلى الله عليه وسلم صفتي نوم دے-

**منزابښه** :- (مَن + زا + خه / شه)(اس ،مو،ج ـ ښې) يو قسم مېوه -

ځنغوزي ، ګورګور ، پليونه منزابښې

امب يمبو سدافل انا ناس كنارمت (دولت)

**منزتزوكي** :- (مَن + ز + ته + زو + كي)(اس ، مع) د علي شېرخېلو ښانګه ده -شنواري دي -(په بله شجره كښې د علي شېر خېلو په اولاد كښې څۀ چې د نورو شينوارو په شجرو كښې هم دا نوم نشته -(بخاري) -

**منزرے** :- (مُن + ز + رے)(اس ، مذ ، ج ـــــ ري) زمرے ، مزرے ، شېر ، محاورتاً بهادر ، زړۀور -

**منزغزے** :- (مَنْ + ز + غ + زے)(اس ، مذ) مازغۀ ، ماغزۀ، دماغ-

**منزل** :- (مَنْ + زل)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه / منازل) د نزول كولو ځاے ، د كوزېدلو ځاے پړاؤ -كور ، د استوګنې ځاے -سرائې -د خاص مسافت سفر چې په مېنځ كښې ئې دمه نۀ وي -د يوې ورځې د سفر مسافت -د قرآن مجيد اوومه برخه -د سپوږمۍ يو پړاؤ -

**ـــــ ته رسېدل** :- مقرره يا مطلوبه ځاے ته رسېدل - محاورتاً مقصد پوره كېدل

**ـــــ قطع كول** :-لاره وهل ، سفر كول ، لار قطع كول (په پښتو كښې ,, مزل ،، وائي)

**ـــــ كول** :- پړاؤ كول ، په سفر كښې په كوم ځاے كښې دمه كول ، ايسارېدل-

**ـــــ ګاه** :- (ـــــ ګا + ه)(عف ،تر،اس،ظر،مذ ،ج ـــــ ونه) د پړاؤ كولو ځاے،د كوزېدلو ځاے ،د استوګنې ځاے ، كور -

**ـــــ مقصود** :- (ـــــ (ل) مَقْ + صو + د)(عف ، تر،اس ، مذ) د مقصود منزل ، هغه ځاے چېرته چې رسېدل مقصود وي ،مقصود ،مقصد -

**ـــــ وهل** :- لار وهل ، سفر كښې تګ كول - (پښتو كښې د ,, منزل ،، په ځاے د ,,مزل،، لفظ استعمالېږي) -

**منزل** :- (مُ + نَزْ + زَلْ)(ع،اس ، مذ ، مو ـــــ ه) نازل كړے شوے ، نازل شوے -راكوز كړے شوے ، را استولے شوے-

**منـــزل** :- (مُـــن + زِلْ)(ع ،اس / صـــف ، مـــذ ، مـــو ـــــ ه) نـــازل كـــوونكے ، راكوزوونكے ، رالېږونكے راښكته كوونكے -

**منزلت** :- (مَنْ + ز + لت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) قدر ، عزت او مرتبه ، لوړ مقام وركونه-

**قدر او ـــــ** :- (قَدْ + ر + او ـــــ)(عپ ، تر،اس،مذ) عزت او درناوے-

**قدر او ـــــ كول** :- عزت او احترام كول ، قدر او درناوے وركول-

**قدر او ـــــ موندل / ميندل** :- عزت او احترام موندل ، قدر او درناوے كېدل-

**منزله** :- (مَنْ + زِ + لَ)(عف ، تر ، صف) درجې - چت ، چت واله ، چتونه لكه : دا كور ځلور منزله دے-

**منزلي** :-(مَن + زِ+ لي)(عف ، تر ، صف) منزل سره تعلق لرونكے ،منزل ته منسوب

**منزوي** :- (مُن + زَ + وي)(ع ، اس ، فا) ګوښه نيوونكے ، په ګوټ كښې كښېناستونكے ،ځان له ،يوائې ،يوائې تيا ، لكه : ګوښه او منزوي ژوندي-

**منزه** :- (مُ + نَزْ + زه)(ع ، صف) پاك ، معصوم ، د ګناه يا د عيب وغېره نه پاك ، مُبرا -

**منزئ** :- (مَنْ + زئ)(اس ، مع) د سلېمان خېلو ښانګه ده -غلزي-

**منزئ** :- (مَنْ + زئ) (اس ، مع) د ,, دركزئ ،، ښانګه ده لوني يا لوڼي دي-

**منزئ** :- (مَنْ +ـ زئ)(اس، مع) د بارك ختكو يو ښانګه ده-

**منزئ** :- (ددغه)(اس ، مع) د علي زئيو په دوه ؤ لويو قبيلو كښې يوه قبيله ده -د منزئيو ښانګې دادي -ګدي خېل او پلي خېل-

**منږك** :- (مَنْ + ږك)(اس،مذ ،ج ـــــ ان) مږه ، موش-

**منږكورے** :- (مَنْ + ږه + كُو + رے)(اس،مذ ،ج ـــــ ري) وړوكے منږك ، وړوكے موش ، موشك-

**منرکه** :- (مَن + رَ + کَه) د ,,منرک ،، تانیث دے۔

**منساري** :- (مَنْ ـ سَا + رِيْ)(اس ، مع) د سکندر خېلو څانګه ده ۔ (سکندر خېل ، بادیوئ ، علي خېل، برني شمن خېل) محسود دي۔

**منسرج** :- (مُن + سَ + رُج)(ع ، اس ، مذ )(عروض) د یو بحر نوم دے ۔دا نوم ورله ځکه ورکړے شوے دے چې په اسانه لوستلے کېدے شي۔وزن ئې ,,مستعفلن ، فاعلات ، مستعفلن فاعلات ،، دے۔

**منسک** :- (مَن + سک )(ع ، اس ، مذ ، جـ ونه) د عبادت ځاے ، عبادتخانه ، په مکه معظمه کښې هغه خاص ځاےچېرته چې حاجیان قرباني کوي۔

**منسلک** :- (مُن + س + لک )(ع ،صف ، مذ ،مو ــ ه) پئیلے یا پېرلے شوے ، په تار وغېره سره یو ځاے کړے شوے۔سره یو ځاے تړلے شوے۔

**ــــ کول** :- په تار وغېره سره یوځاے کول۔یو ځاے په تار پېرل ، کاغذونه وغېره یو بل سره یو ځاے تړل۔

**منسلکه** :- (مُـنْ + س + لَـکَ)د ,, منسلک ،، تانیث دے ۔ نښلولې شوے،یو ځاے تړلے شوے سره لګولے شوے۔

**منسم خېل** :- (من+ سُم ،خې + ل)(اس، مع) د برمي خېلو څانګه ده ۔ (برمي خېل ، قندهار خان خېل ، هاتي خېل ، سین خېل ، احمد زئ ، درویش خېل) وزیر۔

**منسوب** :- (مَنْ + سُو + ب)(ع ،اس ، مو، مذ ــ ه) نسبت ورکړے شوے ۔ متعلق کړے شوے ۔د هلک جینۍ یو بل سره نسبت ورکړے شوے ۔ کوژده شوے۔

**ــــ کول** :- نسبت ورکول، تړون ورکول ، تړل ، هلک جینۍ یو بل ته منسوب کول، کوژدن کول ، په نامه کول۔

**ــــ کېدل** :- نسبت ورکړے کېدل ، تړون ورکړے کېدل ، تړلے کېدل ۔ کوژدن کېدل ، په نامه کېدل۔

**منسوبول** :- (مُنْ + سُو + بَ + ؤل)(و ــ منسوب کول)۔

**منسوبیت** :- (مَنْ + سُو + بي + یَتْ)(ع ، اس ، مذ ) نسبت ورکړے کېدنه ، منسوب کېدنه ، په نامه کېدنه۔

**منسوبېدل** :- (مَنْ ، سُو + بې + دل)(و ــ منسوب کېدل)۔

**منسوج** :- (مَنْ + سُو + ج)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه) هغه څیز چې اودلے شوے وي۔اودلے شوے۔زربفت ، چې طیلې پرې شوې وي۔

**منسوجات** :- (مَنْ + سو + جا + ت)(ع ،اس،مو،ج ) د ,, منسوجه ،، جمع ده ۔ ټوکي ، کپړې ، رخت۔

**پشمي ــ** :- (پَشْ + مي ــ)(عف ، تر،اس ،ج ) د پشم نه جوړ شوي ټوکي ، ورېن رخت ، ورېن ټوکي۔

**پُنبه ئې ــ** :- (پُ + مْ + بَ + ئي ــ)(عف،تر،اس، ج) د پنبې یعنې د سپنهسو اودلے شوي ټوکي ، سپنهسین رخت۔

**رېښمین ــ** :- (رې + خ + مي + ن ــ)(عپ ، تر ، اس ، ج) د ورېښمو نه جوړ ټوکي

**کتاني ــ** :- (کَ + تا + نِيْ ــ)(عف، تر، اس ، ج) د کتان د نوع ټوکي ، رېښمین ټوکي۔

**منسوخ** :- (مَنْ + سُو + خ)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه) پرېښودے شوے ، بدل کړے شوے ، رد کړے شوے۔ هغه حکم چې په یو بل هم دغه شان حکم بدل کړے شي یا ئې په ځاے بل حکم راشي۔او دغه ړومبے ختم کړے شي۔

**ــــ کول** :- ختمول ، په بل حکم بدلول ، د یو حکم ، قانون وغېره په حقله د غېر نافذ حکم کول۔

**ــــ کېدل** :- رد کېدل ، په ځل کښې نهٔ پاتې کېدل ،غېر نافذ کېدل۔

**ناسخ او ــ** :- (نا + سخ + او ــ)(عپ تر ، اس) د قرآن پاک ځینې آیتونه چې اول ئې حکم نافذ وو۔خو دویم آیت داسې نازل کړے شو چې ددغې اولنې آیت حکم پرې ختم شو۔اولنې آیت ته چې حکم ئې نور پاتې نهٔ شو۔منسوخ (آیت) وائي۔او هغه آیت چې اولنے حکم منسوخ کوي ناسخ بللے شي۔

**منسوخول** :- (مَنْ + سو + خ + ؤل)(و ــ منسوخ کول)۔

**منسوخي** :- (مَنْ + سو+خي )(و ــ منسوخیت)۔

**منسوخیت** :- (مَنْ + سُو + خي + یَت)(ع ،اس، مذ ) منسوخ کېدنه ، نافذ نهٔ پاتې کېدنه، منسوخي ، ختمېدنه۔

**منسوخېدل** :- (مَنْ +سو + خې+ دل )(و ــ منسوخ کېدل)۔

**منش** :- (مَ +نَش )(ف ،اس) عادت،طبیعت ، خوئي ، خصلت س

**درویش ــ** :- (دَرْ + وي + ش ــ)(ف تر، صف ، مذ ، مو ــ ه) د درویش په شان خوئي خصلت لرونکے ،درویش طبع۔

**صوفي ــ** :- (صو + في ــ)(ف تر،صف ، مذ ، مو ــ ه) هغه سړے چې خوئي بوئي یا عادتونه او خیالات ئې د صوفیانو په شان وي ۔صوفي رنګے / شان۔

**منشاء** :- (مَنْ + شا )(ع ، اس ، مو ) د پیدا کېدو ځاے۔ محاورتاً سبب ، باعث ، وجه ،مقصد ، غرض ، اراده۔

**ــــ اخپستل** :- د چا رائې پوښتل ، د زړهٔ حال معلومول ، مرضا معلومول۔

**ــــ څرګندول** :- خپل مقصد ښئیل ، غرض ښکاره کول۔

**ــــ مې داده** :- (جمله) مقصد مې دادے۔د بیان غرض مې دادے۔

**منشار** :- (مَنْ + شا + ر)(ع ، اس ، مو) د لرګي د څیرلو اله ، اره ، د غلې د صفا کولو اله ، چې یو طرف ته ئې لاستے وي او بل طرف ئې د ړمنځې په شان وي۔ ببوزي ته هم وائي۔ (عامه معنٰی ئې اولنۍ ده)۔

**منشور** :- (مَنْ + شو + ر )(ع ، اس ، مف/مذ ، مو ــ ه) نشر شوے ، خوور وور ، تتربتر ، پراګنده ، دانه وانه۔

**منشور** :- (مَنْ + شُو + ر)(ع ،اس ، مذ ، جــ ونه) د یو سیاسي جماعت د اغراض او مقاصدو وغېره په حقله اعلان۔شاهي فرمان۔

**منشور** :- (مَنْ + شُو + ر )(اس، مذ ، جــ ونه) غټه شیشه ، چې شعاګانې ترې نه خوور شوي حالت کښې باهر ته ووځي۔

**ــــ مثلثي** :- (ــ(ر) مُ + ث + لْ+لَ+ثي)(عف ، تر، اس ، مذ ) هغه غټه شیشه چې درې اوړدهٔ اړخونه لري۔شعاعونه چې ددې نه باهر ته ووځي نو په اووهٔ رنګونو کښې وي ۔درې اړخیزه غټه شیشه ۔دا رنګونه دادي ۔ اودي ، نیله ، اسماني ، شین ، زیړ او سور ، نور رنګونه د دیو په ګډون جوړېږي۔

**منشي** :- (مُن + شي )(ف ، اس ، مذ ، جــ ان) اغاز کوونکے ، شروع کوونکے ، کومه خبره د خپل زړهٔ نه راپیدا کوونکے ۔ لیکونکے ، محرر ، بابو ، کلرک ، مضمون نګار، انشاء پرداز ، ښهٔ ښکلے لیک کوونکے ، ( اوس په دې معنا کښې کم کوز استعمالېږي) د وکیلانو هغه ملازم چې د مقدمو کاغذونه وغېره سنبالوي۔

**ــ توب** :- (ــ تو + ب)(عپ ، تر ، اس ، مذ ) د منشي کار ، د لیک کار ، کتابت،کلرکي۔

**ــ خانه** :- (ــ خا + نَه)(ف ، تر،اس، مو ، جــ نې) دفتر ،چېرته چې منشي یا منشیان کار کوي ۔لویو بنګلو کښې یو وړوکے شان کوارټر چې د افسرانو منشیان به په کښې اوسېدل۔

**ــ ګري** :- (ــ ګ + ري)(ف ،تر،اس ، مو )(و ــ منشي توب)۔

**د اسمان ــ** :- (د ، اس + ما + ن ــ)۔

**دفلک ـــــ**:- (د ، ف + لک ــ) (عپ ،تر، اس ، مذ ، د عطارد ستوري ته وائي

**منشیانه** :- (مُن + شي + یا + نَ) (عف تر ، اس،مو ،ج ـــ نې) د منشیانو فیس چې د وکیل د فیس نه علاوه وي.د منشي په انداز ،د منشیانو په رنگ.

**منبته** :- (م + نبں + تـه) (اس ، مـو ،ج ـــ تـې) نـذر، نیـاز ، منـت ، هغـه ثیزته چې د کوم کار د کېدلو دپاره منلې شوې وي چې که دا کار وشي نو دغه فلانئ ثیز به قرباني کوم یا خېرات کوم.

**ـــ کوم** :- نذر منل ، نیازمنل (و ـــ منبته ).

**منصب** :- (مَنْ + صَبْ) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) عهده ، مرتبه ، مقام ،اوچت ځاې یا ملازمت.

**ـــــ دار** :- (ـــــ دا + ر) (عـف ، تـر،اس، مـذ ،ج ـــ ان) منصب لـرونکې ، عهدېدار ، عهده لرونکې ،مرتبه لرونکې.

**ـــــ داره** :- (ـــــ دا + ر)(اس ،مـو ،ج ـــــ رې) منصب لرونکې ښځه ، عهدېداره ښځه.

**ـــــ داري** :- (ـــــ دا + ري) (عـف،تر،اس، مـو ) منصب لرونـه ، عهـده ، عهده داري ، مرتبه لرنه.

**منصبي** :- (مَنْ + صَ + بِيْ) (عـف،تر، صـف) منصب سره تعلـق لـرونکې ، منصب ته منسوب ، عهدې سره تعلق لرونکې ، منصب واله.

**ـــــ فـرض** :- (ـــــ فَرْ + ض) (عـپ ، تـر ، اس مـذ ) هغـه ذمـه داري چې د عهدې په وجه په چا عائد کېږي.د عهدې په وجه ذمه داري.

**منصرف** :- (مُنْ + ص + رِف) (ع،اس،صف،مذ ،م ـــ ه) گرځېدونکې، د یـو حالت نـه بـل حالت تـه ورگرځېدونکې . بـاغي .(گرامر) هغـه کلمـه چې گردان ئې کېدې شي.

**ـــــ کول** :- څوک د هغهٔ د ارادې یا پرېکړې نه اړول.

**ـــــ کېدل** :- د خپلې ارادې وغېره څخه گرځېدل ، اراده بدلول.

**منصه** :- (مُ + نَصْ + صَه) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ صې) د څرگندېدلو ځاې.هغه ځاې چېرته نه چې کوم څیز ښودلې شي.هغه تخت وغېره چې ناوې پرې کښېنولې او ښکاره کولې شي.

**ـــــ شهود** :- (ـــــ شُ + هو + د ) (عف ، تر ، اس ، مذ ) د ښکاره کېدلو یا لیدلې کېدلو تحت یا ځاې.

**ـــــ شهود کښې راتلل** :- ښکاره کېدل ، لیدلې کېدل ، څرگندېدل.

**ـــــ ظهور ته راتلل** :- و ـــــ ,,منصهٔ مشهود ته راتلل ،، .

**منصـف** :- (مُـنْ + صِـف) (ع ، اس،مـذ ،ج ـــ ان) انصـاف کوونکې،عـدل کوونکې، عادل ، د دیواني عدالتونو جج.

**ـــــ کېدل** :- پـه عدالت کښې جج جوړېدل ، دریم گړې کېدل او انصاف سره فېصله کول ، ثالث کول. د جرگې غړې / مشر جوړېدل.

**ـــــ مزاج** :- (ـــ م + زا+ ج) (عف ، تر ، مذ ، مو ـــ ه) انصاف خوښوونکې ، انصاف دار.هغه چې صفا او حقه خبره کوي.

**منصفانه** :- (مُن + ص + فا + نَه) (عف ، تر، تف) د منصف پـه انداز یـا پـه شـان ، د انصاف کـوونکي پـه شـان یـا پـه طریقـه ، پـه انصـاف سره ، دانصـاف مطابق.

**منصفه** :- (مُن + صفه) (اس ، مو ، ج ـــ انې) د ,,منصف،، تانیث دې.

**منصفي** :- (مُن + صَ + فِيْ) (عف تر ، اس ، مـو ) انصاف کونه ، عـدل کونـه ، انصاف عدل.

**ـــــ کول** :- منصف جوړېدل ، پـه انصاف سره فېصله کول ، انصاف کول ، ثالثي یا دریم گړتوب کول.

**منصوب** :- (مَنْ + صو + ب) (ع ، اس،مف، مذ ، مو ـــ ه) نصب کړې شوې ، لـک کړې شوې ، نېغ ودرولې شوې ، لـک شـوې .(گرامر) هغـه تورې (حرف) چې د زور علامت لري.

**منصوبه** :- (مَنْ + صُوْ + بَه) د ,,منصوب،، تانیث دې.

**منصوبه** :- (مَنْ + صُوْ + بَـه) (ع ، اس ، مـو ، ج ـــ بې) اودرولې ثیـز ، لـک کړې ثیز. تجویز.د کوم کار دپاره لائحه عمل.

**ـــــ باز** :- (ـــــ بـا + ز) (عـف ، تـر، اس ، ج ـــ ان) منصـوبې جـوړوونکې ، تجویزونه جوړونکې ، تدبیرونه کوونکې.

**ـــــ بندي** :- (ـــــ بَنْ + دي) (عف ، تر، اس ، مـو ) منصوبه تیـارول ، تجـویز جوړول. د کوم کار د کولو دپاره لائحه عمل تیارول.

**ـــــ جوړول** :- تجویز جوړول ،د کوم کار د کولو دپاره د عمل لاره طریقه وغېره جوړول.

**منصوبیت** :- (مَنْ + صُوْ + بِيْ + یَتْ) (ع،اس،مذ ) منصوب کېدنه.

**منصور** :- (مَن + صُو + ر) (ع،اس، مف ، مذ ، مو ـــ ه) نصرت کړې شوې ، بریالې ، فتح مند ، کامیاب ، غالب. یو صوفي ، چې د انا الحق (زهٔ حق یا خداې یم) نعره وهلې وه ځکه د شریعت له رویه په سولۍ یا تېزندۍ کړې شو.

**منصور** :- (مَنْ + صُو + ر ) (اس ، مع ) د گدنو یوه څانگه ده.

**منصوص** :- (مَنْ + صـو + ص) (ع،اس ، مـف، مـذ ، مـو ـــ ه) د نـص مطـابق ، تحقیق شوې.نص ته رسېدلې. د قرآن پاک هغه آیت چې معنی صفا وي او د تاویل گنجائش په کښې نهٔ وي. هغه حدیث چې پوره طور سره ثابت وي.

**منضبط** :- (مُنْ + ضَ + بِطْ) (ع، اس، صف،مذ ، مـو ـــ ه) پـه ضـبط یـا پـه ضابطه کښې راوستونکې ، یو ځاې کوونکې.

**منضم** :- (مُـن + ضَـم) (ع ، اس ، مـف ، مـذ ، مـو ـــ ه) ضـم شـوې ، ورگډ کړې شوې. یو ځاې کړې شوې ، شریک کړې شوې.

**ـــ کول** :- یو ځاې کول ، ملاوؤل ، منسلک کول ، ضمیمه کول.

**منطبق** :- (مُن + ط + بِق) (ع ، اس ، صف، مـذ ، مـو ـــ ه) مطابق کېدونکې ، مطابقت خوړونکې ، د یو بل دپاسه درست او پوره پوره راتلونکې.

**ـــــ کېدل** :- برابرېدل ، لاندې باندې کښېښودلو سره ، پوره پوره یـو بـل سره سمېدل درست یا یو شان ثابتېدل.

**منطق** :- (مُن + طِق) (ع ، اس ، مذ ) گویائي ، خبرې کونه.تلفظ ، لهجه ، د یـو علم نوم چې په کښې مسئلې په عملي دلیلونو سره ثابتولې شي.

**ـــ پوه** :- (ـــ پو + ه) (عپ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د منطق په علم پوهـه ، د منطق عالم.

**منطقاً** :- (مُنْ + ط + قًا) (ع ، تف) د منطق لـه رویـه ، د منطق د قاعـدو اصولو مطابق ، د عقلي دلیل له رویه.

**منطقه** :- (مَنْ + طَ + قَه) (ع ، اس،مو ، ج ـــ قې/ مناطق) هغـه څادرگې چې د مـلا نـه چاپېره کـولې شي . د زمکې هغـه ټکړه چې د مـلا د رومـال یـا څادرگي په شان د زمکې نه چاپېره ده . د زمکې دا غونډې ټکړې یا خطې د اب و هوا په لحاظ سره په پینځو برخو کښې وېشلې شوې وي.منطقـه حاره (گرمه منطقه) چې د خط استوا د دواړو اړخونو تـه ده.منطقـه بـارده (یخه) شمال او منطقه بارده مغربي چې دواړو قطبونو پـه خـوا و شـاه کښې دي او منطقه معتدله شمالي او منطقه معتدله جنوبي .چې د منطقـه حـاره او د دواړو باردو ایخو خطو تر مینځ ه دي.

**بارده ـــــ** :- (با + ر + دَ ـــــ).

**یخه ـــــ** :- (يَ + خَه ـــ) (عف ، تر ، اس ، مو ) یخه منطقه ، د زمکې قطب او سهیل سرونو ته هغه خطه چې سمندرونه ئې پـه کـال کښې اکثـر واوري وي.دا د قطبونو د صفر درجو نه واخلئ تر ½٢٣ درجو پورې دي.

**حاره ـــــ** :- (حا + ر + رَه ـــــ).

**گرمه ـــــ**:- (گر + مَه ـــــ) (عف ، عپ تر ، اس ، مو) د زمکې هغه خطه کومه چې استوا د خط څخه قطب او سهېل طرف ته خوره ده .دا د استوا د صرف درجې نه تر ½۲۳ درجو پورې قطب طرف ته او ½۲۳ درجې جنوبي قطب طرف ته ته خوره ده.

**ـــــ البروج**:- (ـــــ + ال ، بُ + رو + ج) (ع ، اس ، مو) هغه لويه (فرضي) دائره چې په کښې د اسمان دولس برجونه واقع دي .ددغو برجونو نومونه دادي .حمل، ثور، جوزا، سرطان، اسد، سنبله ، ميزان ، عوب و قوس ، جدي ، دلو او حوت.ددې برجونو پښتو نومونه څهٔ داسې دي. ----ے ، غوئې ، غبرګونې ، چنګاښ ،زمرے، وږے ، تله ، لړم ، ليندہ ، ورغومے ، ډول / ملواغه ، کب / مهې. بروج د برج جمع ده. د برج مطلب ستورے دے.يعني دولس ستوري چې نومونه ئې بره ورکړے شوي دي.

**معتدله ـــــ**:- (مُع + ت +د + لَه ـــــ) (عف ، تر،اس، مو) د زمکې هغه خطې د ګرمې منطقې او د بارده منطقو تر مېنځ ه دي .دا خطې نهٔ خو ډېرې ګرمې دي او نهٔ خو ډېر زياتې يخې .دا د ½۲۳ درجو نه واخلئ تر ۴۷ درجو پورې قطب او سهېل طرف ته دي.

**منطقــوي**:- (مُـن + ط + ق + وي) (ع ، صـف) د منطـق د اصـولو مطـابق ، د منطق د علم سره تعلق لرونکے ،د علمي دلايلو سره ثابتېدونکې.

**ـــــ قرار داد**:- (ق +را+ر+دا+د) (عف، تر،اس ، مذ ، ج ـــونه) هغه قرارداد چې عقلي دلايلو سره سمون خوري.

**منطقي**:-(مُن + طَ + قي) (عف ، تر ، صف) منطق سره تعلق لرونکے ، منطق ته منسوب ، عقلي دليلونو سره سم.

**ـــــ حل**:- (ـــــ حَل) (عپ ، تر، اس ، مذ ، ج ـــونه) د کومې مسئلې يا د شخړې داسې حل کوم چې د عقلي دليل سره سم وي.عقلي حل.

**ـــــ نتيجه**:- (ـــن + تي + جَ) (عپ ، تر ، اس ، مو ، ج ـــجې)د کومې خبرې هغه نتيجه چې د عقلي دليل له رويه راووځي.يعني د يو عمل د مختلفو مرحلو د رُخ او رفتار په بنياد او ددغه عمل په موقعه د پرله پسې راتلونکو واقعاتو په رڼا کښې چې عقل ددغه عمل کومې نتيجې متوقع ګڼي.د عقل مطابق نتيجه.

**منطقې**:- (مُن + طَ + قې) (عپ ، تر، اس ، مو ، ج) د ,, منطقه ،، جمع ده . د ,, منطقه،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**منظر**:-(مَن + ظر) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــونه)د نظر (د لګېدلو) ځاے ، نظاره ، د سېل ځاے ، ښکلے ځيز يا ځاے چې سترګې ئې ګوري ، سين ، سينري.دريچه ، کړکۍ ، روزن ، سترګه ، مخ.

**ـــــ چشم**:- (ـــر ، چَش + م) (عف ، تر، اس ، مذ) د سترګو تور.

**منظر خېل**:- (مَنْ + ظَرْ + خې + ل) (اس ، مع) د عزيز خېلو ښانګه ده. (عزيز خېل ، ابمل خېل ، بهلول زئ محسود دي.

**منظر خېل**:- (ددغه) (اس ، مع) د ابراهيم خېلو ښانګه ده . (ابراهيم خېل ، اتمانزي ، درويش خېل) وزير دي.

**منظري خېل**:- (مَن + ظ + ري + خې + ل) (اس ، مع) د ميتاخېلو ښانګه ده . (ميتاخېل ، باديوئ ، خلي خېل ، شمي خېل) محسود دي.

**منظور خېل**:-(مَن + ظو + خې + ل) (اس ، مع) تور خېلو ښانګه ده . (تور خېل ، عمر زئ ، سين خېل ، احمد زئ ، درويش خېل) وزير دي.

**منظرِ عام**:- (من + ظَر ، عا + م) (عف ، تر ، اس ، مذ) په عام منظر کښې ، د عامو خلقو په نظر کښې ،د عامو خلقو د وړاندې. ښکاره منظر يا حالت.

**ـــــ کښې**:- د يوې نظارې (کتنې) د ځاے نقشه په رنګونو يا په شعرونو کښې داسې راښکل چې اصل ته ډېره نزدې وي. لکه : د جنګ منظر کشي.

**ـــــ نګاري**:- (ـــــ ن + ګا + ري) (و ـــــ منظر کشي).

**منظره**:-(مَن + ظَ + رَ) (عپ ، تر، اس ، مو، ج -ې) د ,, منظر ،، تانيث دے لکه : ددې کور منظره ډېره ښکلې ده.

**ـــــ دار**:- (ـــــ دا + ر) (عف، تر، صف، مذ ،مو ـــ ه) ښائسته منظره لرونکے ، هغه ځاے يا ځيز چې ښکلے او په سترګو ښهٔ لګېدونکے وي .د سېل وړ ځاے وغېره.سينري واله.لکه : منظره داره وادي.

**منظم**:- (مُ + نَظ + ظَمْ) (ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) په تار کښې پېړلے يا پئيلے شوے . نظم شوے ، موزون کلام ، هغه کار وغېره چې په ښهٔ اسلوب او انتظام سره شوے وي يا کولے شي. لکه : منظم بغاوت.

**ـــــ کول**:- باقاعده په ترتيب کښې راوستل .په نظام کښې راوستل . د منتشر کول متضاد ، اپوټه دے.

**ـــــ کېدل**:- باقاعده ، په ترتيب کښې راتلل ، په نظام کښې راتلل ، تنظيم جوړول.د ,, منتشر کېدل،، متضاد .

**په ـــــ انداز**:- (پ + ـــــ اَنْ + دا + ز) (عپ ، تر ، تف) په داسې طريقه چې د ټاکلې شوې طريقې او انتظام مطابق وي.

**منظمه**:- (مُ + نَظْ + ظ + مَ) (صف، مو،ج ـــ مې) د ,,منظم،، تانيث دے.

**منظماً**:- (مُ + نَظْ + ظَ + مَن) (ع ، تف) په منظمه طريقه ، په منظم انداز .

**په ـــــ طريقه**:-

**پــه ـــــ توګـه**:- په داسې طريقه يا انداز چې د ټاکلې شوې طريقو کار ، پروګرام يا لائحه عمل مطابق وي.

**منظور**:- (مَن + ظُو + ر) (ع ، اس، مف ، مذ ، مو ـــ ه) ليدلے شوے ، په نظر کښې راغلے . خوښ کړے ، غوره ، قبول شوے ، مقصد او مقصود ، غرض ، ددې بيان منظور دادے چې----

**ـــــ کول**:- قبلول ، منل ، تسليمول ، اجازت ورکول.

**ـــــ کېدل**:- قبلېدل ، منلے کېدل ، تسليم کېدل ،اجازت ورکړے کېدل.

**ـــــ نظر**:- (ـــــ ر) نَ + ظر) (عف ، تر ، صف) په نظر کښې قبلېدونکے يا قبول شوے.هغه چې د چا ډېر زيات خوښ وي.زړهٔ ته نزدې.

**ـــــ نظر کېدل**:- د زړهٔ خوښېدل ، زړهٔ ته نزدې کېدل په زړهٔ کښې ځاے کول.

**په دغه ـــــ**:- (پ ، د + غَ ـــــ) په دغه مقصد ، په دغه غرض.

**منظورول**:- (مَنْ + ظُو + ر + وُل) (و ـــ منظور کول).

**منظوري**:- (مَن + ظُو + ري) (عف ، تر، اس ، مو) قبلېدنه ، منلے کېدنه ، اجازت ورکړے کېدنه، اجازت.

**ـــــ اخېستل**:- اجازت اخېستل.

**ـــــ ورکول**:- قبلول ، منل ، د قبلونې اظهار کول ، د قبلولو حکم جاري کول ، اجازت ورکول.

**منظورېدل**:- (مَنْ + ظُوْ + رې + دل) (و ـــ منظور کېدل).

**منظوم**:- (مَن + ظُو + م) (ع ، اس ، مف، مذ ، مو ـــ ه) نظم کړے شوے ، په تار وغېره کښې پېړلے شوے . په نظم کښې وئيلے شوے .د نثر په مقابله کښې په شعرونو کښې وئيلے شوے.لکه : منظوم داستان.

**منظومه**:- (مَنْ + ظُو + مَ) د ,,منظوم،، (صف) تانيث دے.

**منظومه**:- (مَنْ + ظُو + مَ) (اس،مو،ج ـــ مې) وړوکے شان نظم.

**منع**:- (م + نَع) (ع ، اس) باز لرنه ، نهٔ پرېښودنه .ناجائز ، ناروا (په پښتو کښې عموماً د ,,ن،، زېر وئيلے شي).

**ـــــ کول**:- باز لرل ، کوم کار وغېره ته نهٔ پرېښودل ، ناجائز ګرځول ، ناروا ګرځول

**ـــــ کېدل**:- باز راتلل ، کوم کار وغېره نهٔ کول ، پرهېز کول ، څهٔ نه ځان ساتل.

**منعه** :- (مَنْ + عَ)(و ـــ منع).

**ـــ مناهي** :- (ـــ م + نا + هي)(ع ، تر ، اس ، مو) د دوارو لفظونو يو شان معنې دي. دوېم لفظ په معنٰى كښې تاكيد پيدا كوي. هېڅ قسم ممانعت.

**هېڅ ـــ مناهي نشته** :- (جمله) هېڅ قسم ممانعت نشته. كامله ازادي ده.

**منعدم** :- (مُن + ع + دِم)(ع ،اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) عـــدم شـــوے ، نېست شوے ، بېخي ورک شوے ، نابوده شوے ، نابوده.

**ـــ كول** :- نيست نابود كول، بېخي وركول ، تباه كول.

**منعطف** :- (مُن + ع + طف)(ع ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) ګرځوونكے ، تاوۆونكے ، تاوېدونكے، ګرځېدونكے ، كږېدونكے ، خم خوړونكے.

**توجه ـــ كول** :- توجه ورګرځول ، پام ګرځول ، پام ته راوستل.

**منعقد** :- (مُن + عَ + قدْ)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) په عقد كښې راتلونكے ، پيـــرلے كېـدونكے ، مېـنځ تـه راتلـونكے ، وجـود كښـې راتلـونكے ، پـه كېدلو كېدونكے.

**منعقدول** :- (مُن + ع + قد + وُل)(مص)(و ـــ منعقد كول).

**ـــ كېدل** :- په كېدلو كېدل ، واقع كېدل ، موجودېدل ، مېنځ ته راتلل او نور لكه : جلسه منعقده شوه.

**منعقېدل** :- (مُنْ + ع + ق + دې + د + ل)(مص)(و ـــ منعقد كېدل).

**منعكس** :- (مُن + ع + كَس)(ع ، اس ، صف، مذ ، مو ـــ ه) پـه عكس كېدونكے ، عكس قبلوونكے ، راتاؤ شوے ، راستون شوے ،اړولے ، اُلټه ، سرنګون.

**ـــ كول** :- په بېرته راستنول ، پستنه را اړول. لكه : ائينه رڼا منعكس كوي.

**ـــ كېدل** :- پـه بېرتـه را اړولے كېدل ، په بېرته راستون كېدل ، لكه : د ائينې نه رڼا منعكسه شوه.

**منعكسول** :- (مُن + ع + ک + س + وُل)(و ـــ منعكس كول).

**منعكسېدل** :- (مُن + ع + کَ + س + دل)(و ـــ منعكس كېدل).

**منعم** :- (مُن + عِمْ)(ع ، اس ، صف، مذ ، ج ـ ان/ين) د نعمت، خاوند ،دولتمند ، شته م ،مالداره ، مالک ،سرپرست ، سخي،مخير ، فياض،محسن.

**منغص** :- (مَ + نَغْ + غَصْ)(ع ، اس ، صف، مذ ، مو ـــ ه) مكـــدر ، خيـــرن ، خيرے واله.ناراضه ، خفه ، مرور.

**طبيعت ـــ كول** :- طبيعت مكدر كول ، طبيعت خټه كول ، زړهٔ خفه كول.

**ـــ كول** :- مكدر كول ، خيرن كول. (محاورتاً) خفه كول ، رنجيده خاطر كول ، ناراض كول.

**ـــ كېدل** :- خيرن كېدل ، مكدركېدل ، خفه كېدل ، رنجيده خاطر كېدل.

**منفصل** :- (مُن + ف + صل)(ع ، اس، مف ، مذ ، مو ـــ ه) جدا كړے شوے ، بېل ، جدا.

**منفصل** :- (مُن + ف + صل)(ع ، اس، مذ ، مو ـــ ه) جدا كوونكے ، بېلوونكے ، جدا كېدونكے ، بېلېدونكے.

**ـــ ضمير** :- (ـــ ض + مي + ر)(ع ، مذ ، ج ـــ ونه) (ګرامـــر) هغـــه ضمير چې ځان له جدا وي او فعل وغېره سره نښتے نهٔ وي. لكه : زهٔ ، تهٔ.

**ـــ كول** :- جدا كول ، بېلول ، موقوف كول ، د نوكرۍ نه ايستل ، ډسمس كول

**منغۀ كور** :- (مَن + غني + كو + ر)(اس ، مع) د جبر خېلو ځانګه ده . (جبر خېل، موسٰى خېل ، سپاه ، بائيزي) مهمند دي.

**منفجر** :- (مُن + ف + جِر)(ع ، صف، مذ ، مو ـــ ه) اور اخسـېتونكے ، لمبه كېدونكے. لكه : منفجر مواد.

**ـــ كېدل** :- اور اخېستل ، لمبه كېدل ، (د پټاخې يا بم پشان خلاصېدونكے.

**منفرج** :- (مُـن + فَ + رِج)(ع ، اس ، مـذ ، مـو ـــ ه) پرانسـتے ، ويـړ ، چاؤدلے ، جدا شوے.

**منفرجه** :- (مُـن + ف + ر + جَ)د ,,منفرج،، تانيث دے .عموماً پـه مركب ,, منفرجه زاويه ،، كښې استعمالېږي .ويړه زاويه چې د قائمه درجې زاويه وي.

**منفرح** :- (مُن + فَ + رِح)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) خوشحاله ، ښاد ، خوشحالېدونكے.

**منفرد** :-(مُن + فَ + رد)(ع ، اس ، صف، مذ ، مو ـــ ه) يواځې، تنها ، يكړ ، يكتا ، يګانه، بې مثاله.

**منفرداً** :- (مُن + ف + ر + دَن)(ع ، تف) انفرادي طور سره ،ځان ځان له يواځې.

**منفذ** :- (مُنْ + فَذْ)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه / منافذ) سورے ، چارد ، روزن ، لار ، ګذرګاه ، كنډاؤ.

**منفعت** :- (مُن + فَ + عَتْ)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه/منافع) نفع ، فائده.

**ـــ بخش** :- (ـــ ب + خ + ش).

**ـــ بخښونكے** :- (ـــ بخ + ښُو + ن + كے)(ع ف پ تر ، اس ، فا ج ـــ كي) نفع وركوونكے ، نفع مند ، ګټه ور ، نفعې واله ، هغه څيز يا كار چې په كښې ګټه وي ، سودمند.

**ـــ جو (ے)** :- (ـــ جُو (ے))(عف ، تر ، صف) منفعت لټوونكے ، نفع لټوونكے ، خپله ګټه لټوونكے.

**ـــ جوئي** :- (ـــ جُو + ئي)(عف ، تر ، اس ، مو) نفع لټونه ، خپله ګټه لټونه. د نفعې حرص ، خپل سود لټونه.

**منفعل** :- (مُن + ف + عـل)(ع ، اس ،صف، مذ ، مو ـــ ه) اثر قبلوونكے ،اثر پذير، شرمنده ، نادم ، خجل.

**منفعل** :-(مُن + ف + عَلْ)(ع ، اس ، مف، مذ ، مو ـــ ه) شرمنده ، كچه ، پيكه ، خجل.

منفعل ئې ګل تر مخـه
تر ښهٔ قد ئې سر و پسته (خوشحال)

**ـــ كول** :- شرمنده كول ، خجل كول ، پښېمانه كول.

**ـــ كېدل** :- شرمنده كېدل ، شرمېدنه ، خجل كېدل.

**منفک** :- (مُن + فَکْ)(ع ، اس ،صف، مذ ، مو ـــ ه) جدا كړے شوے ، بېل كړے شوے .جدا ، بېل.

**ـــ كېدل** :- جدا كېدل ، بېلېدل لكه : يو ساعت هم د كار نه شم منفک كېدلے

**منفور** :- (مَن + فُو + ر)(ع ، اس ، مف، مذ ، مو ـــ ه) نفـرت كـړے شـوے ، هغه چې كركه ترې كولے شي.

**منفوريت** :- (مَن + فو + ري + يت)(ع ، اس ، مذ) نفرت كونه ، كركه كونه ، كركه.

**منفي** :- (مَنْ + فِي)(ع ، صف) نفي كړے شوے ، تفريق كړے شوے ، منها كړے شوے.(ګرامر) هغه چې د يو كار نهٔ كېدنه ترې څرګندېږي.

**ـــ اغېزه كول** :- منفي اثر كول ، اړولے اثر كول ، الټه اثر كول ، بد اثر كول.

**ـــ جواب** :- (ـــ ج + وا + ب)(عف ، تر،اس، مذ) داسې جواب چې ,,نه ،، يا انكار ترې څرګندېږي. بد جواب يا خراب جواب ، د توقع خلاف جواب.

**ـــ قطب** :- (ـــ قط + ب).

**ـــ سر** :- (ـــ س + ر)(ع ، پ تر ، اس ، مذ) د بجلۍ د تار هغه سر چې په كښې د منفي قسم بجلي وي.(انګ : نے ګېټيو پول).

**ــــ کول** :- منها کول ، د يو رقم نه بل رقم کمول يا لرې کول.

**منقاد** :- (مَنْ + قا + د)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) مطيع ، فرمان وړونکے ، حکم منونکے ، تابع.

بنده نــۀ رسي د رب ثنا صفت ته

په تصديق د ئې و امر ته منقاد شي (حافظ)

**ــــ کول** :- مطيع کول ، د فرمان لاندې راوستل. د حکم لاندې راوستل.

**ــــ کېدل** :- مطيع کېدل ، فرمانبرداره کېدل ، تابع کېدل.

**منقار** :- (مُن + قا + ر)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د مرغۍ مښوکه.

تور زاغان چې منقار نۀ ساتي له خبثه

د چمـــن د ګلو کلـــه مستحق دي (حافظ)

**منقبت** :- (مُن + قَ + بَتْ)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) تعريف ، صفت ، ثنا (اصلاً هغه څيز ته وائي چې بني ادم پرې فخر کولے شي ـ لياقت ، خوبي خاصيت) ـ په اصطلاح کښې د اهل بيتو ، د صحابه وُ رض صفتونه او اوصاف بيانول.

**ــــ وئيل** :- د چا تعريف کول ، د چا ثنا کول ، خصوصاً منظوم صورت کښې منثور هم کېدے شي.

**منقبض** :- (مُن + ق + بِضْ)(ع ، اس ، صف ، مذ ـــ ه) قـبض شـوے ، راټول کړے ، راغونډ شوے ، تنګ تنګ تړلے شوے ، د طبيعت په حقله ، د زړۀ په خفګان اخته ، خفه ، طبيعت خته شوے.

**ــــ کول** :- راټولول ، راغونډول.

**ــــ کېدل** :- راټولېدل ، راغونډېدل ، لکه يخنۍ سره اجسام منقبض کېږي.

**منقبضول** :- (مُن + ق + ب + ض + وُ + ل)(و ـــ منقبض کول).

**منقبضېدل** :- (مُن + ق + ب + ضې +د+ل)(و ـــ منقبض کېدل).

**منقدين** :- (مُنْ + قِ + دي + ن) د منقد (اسم) جمع ده.

**منقسم** :- (مُن + قَ + سِم)(ع ، اس ، فا ، مذ ، مو ـــ ه) تقسيم کوونکے ، وېشونکے.

**منقسم** :- (مُن + قَ +سَم)(ع ،مف،مذ،مو ـــ ه) تقسيم شوے ، وېشلے شوے. تقسيمېدونکے ، وېشلے کېدونکے.

**ــــ کول** :- تقسيمول ، وېشل.

**ــــ کېدل** :- تقسيمېدل ، وېشلے کېدل.

**منقش** :- (مُ + ن + ش)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) نقش والـه ، نقش دار ، نقش و نګار واله.

**منقطع** :- (مُن + ق + طع)(صف) قطع شوے ، پرېکړے شوے.

**ــــ کول** :- قطع کول ، پرېکول ، غوڅول ،ختمول ،اختتام ته رسول ، سرته رسول

**ــــ کېدل** :- قطع کېدل ، پرېکړے کېدل ،غوڅېدل ـ سرته رسېدل ،اختتام ته رسېدل

**منقل** :- (من + قل)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) انګيټۍ ، هغه لوښے چې سرۀ کړي سکارۀ يعني انګار په کښې کښېښودلے شي.

**منقلب** :- (مُن + ق + لب)(ع، صف ، مذ ، مو ـــ ه) اړوونکے ، اړولے کوونکے ، اړولے شوے ، التپه شوے ، برګشته اړولے ، دارګول.

**منقلب** :- (مُن+قَ+لَب)(ع ،اس، مذ) اړولے کېدنه، د ظرف کارهم ورکوي ـ يعني د اړولے کېدلو ځاے.

**منقله** :- (منْ + قَ+لَ) د ,, منقل ،، تانيث دے ـ وړوکے منقل.

**منقوش** :- (مَنْ + قُو + ش)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) نقش کړے شوے ، هغه چې نقش په کښې کنستلے شوے وي.

**منقوط** :- (مَن + قُو + ط)(ع ، اس ، مف ، مذ ،مو ـــ ه) نقطو والـه ، هغه حرف چې لاندې يا باندې نقطې (ټکي) لري.

**منقول** :- (مَنْ + قُو + ل)(ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) نقـل کړے شوے ، نقل شوے ـ بيان کړے شوے ، ذکر کړے شوے ، د يو ځاے نه بل ځاے ته وړلے شوے ،هغه علم چې په کښې په هغو خبرو بحث کولے شي کومې چې د نورو رانقل کړے شوې وي.

**ــــ عنه** :- (ـــ عَن + هُ)(ع ، تر ، اس) د چا نه يا د کوم کتاب نه چې څۀ څيز نقل شوے وي.

**منقولات** :- (مَنْ + قُو + لا+ ت)(ع ، اس ، ج) هغه کتابونه چې په کښې په ,,منقول ،، باندې بحث وي ـ هغه مال يا د ملکيت څيزونه چې د يو ځاے نه بل ځاے ته وړلے کېدے شي.

**منقوله** :- (مَنْ + قُو + لَه)(ع پ ، تر ، اس ، مو) د ,, منقول ،، تانيث دے.

**ــــ جائداد** :- (ـــ جا + ئے + دا + د)(و ـــ منقوله مالونه).

**ــــ مالونه** :- (ـــ ما + لُو + نَه)(عپ ، تر، اس ، ج) هغه مالونه يا څيزونه کوم چې د يو ځاے نه بل ځاے ته وړلے کېدے شي.

**منقي** :- (مَ + نَقْ + قا)(ع ،اس ،مف) صفا کړے ، صفا کړے ـ هغه چې تخم پرې ويستلے شوے وي ،اوچ کړي انګور ، (اصلاً مويز منقي وو).

**من کت** :- (مَنْ + کَتْ)(پ تر ، صف) د ,, من ،، (وزن) په حساب سره تلنه يا قيمت لګونه.

**منکر** :- (مُن + کَر)(ع ، اس ، مذ ،مو ـ ه) انکار کړے شوے ، هغه چې انکار ترې شوے وي ـ هغه څيز چې په شريعت کښې منع وي ، غېر شرع ، بد کار ، قبيح کار.

**منکر** :- (مُن + ک + ر)(ع ، اس ، ج ـ ان / ين) انکار کوونکے ،انکاري.

**ــــ توب** :- (ـــ تو + ب) منکري ، انکاري کېدنه.

**ــــ کول** :- (و ـــ منکرول).

**ــــ کېدل** :- (و ـــ منکرېدل).

**ــــ نکير** :- (ـــ نَ + کِي + ر)(اس ، مع) د دوه وُ فرښتو نومونه دي ـ چې په قبر کښې د مړي نه درې سوالونه کوي ـ چې ستا رب څوک دے ؟ ستا دين څۀ دے ؟ او ستا نبي ص څوک دے ؟ انکير منکير.

**ــــ لره قسم دے** :- (جمله) يو سړے چې په چا څۀ دعوىٰ ولري او هغه د قاضي په مخکښې منکر شي نو بيا هغۀ له قسم ورکولے شي.

**منکرول** :- (مُن+ل+ر+وُل)(مص) انکاري کول، د خبرې نه ګرځول.

**منکره** :- (مُنْ + ک + ره)(اس،مو،ج ـــ رې / انې) د ,, منکر ،، تانيث دے.

**منکري** :- (مُن + کَ+ري)(اس،مو) انکار کونه،انکار ، نۀ منه.

منکـــري د عــــاشقۍ سره ملـــۀ ده

په انکار که دروغژن يم دروغ سل کړم (خوشحال)

**ــــ کول** :- انکار کول ، منکر کېدل.

خلق راته وائي رنګ دبيا زېر شو عاشق شوې

هېڅ منکري نۀ کړم خلقـــه شومه شومه شوم (خوشحال)

**منکرېدل** :- (مُن + ک + رې + دل)(مص) منکر کېدل ، انکاري کېدل ، انکار کول ، د خبرې نه ګرځېدل.

**منکسر** :- (مُـن + ک + سِرْ)(ع ،اس ، صف، مـذ ، مـو ـــ ه) مـات شـوے ، شکسـته ـ هغه چې زړۀ ئې مات شوے وي ـ شکسته حال ـ انکسار کوونکے ، عاجزي کوونکے.

**ــــ خط** :- (ـــ خَط)(عپ، تر، اس) د خط يو قسم ، شکسته خط.

**ــــ المزاج** :- (ـــ (ال) مِ + زا + ج).

**ــــ مزاج** :- (ـــ مِ + زا + ج)(ع تر،عپ تر،صف) هغـه سـړے چې په طبيعت کښې ئې خاکساري او عاجزي وي ـ بې کبره (سړے).

**ـــــ مزاجي** :- (ـــــم + زا + جي) (عپ،تر،اس،مو) عاجزانه طبيعت ، خاکساري ، بې کبري.

**منکشف** :- (مُن + ک + شف) (ع،اس، فا، مذ ،مو ـــه) کشف شوے ، څرګند شوے ، ښکاره شوے ، مکشوف.

**ـــــ کول** :- څرګندول ، ښکاره کول ، ظاهرول ، مکشوف کول.

**ـــــ کېدل** :- ظاهرېدل ،څرګندېدل ، ښکاره کېدل ، مکشوف کېدل.

**منکل زي** :- (مُن + کَلْ + زي) (اس، مع) د هري پالوڅانګه ده .شېرواني دي.

**منکوحه** :- (من + کو + حَ) (ع ، اس ، مو ، ج ـــــ حې) په نکاح کړې ښځه ، هغه ښځه چې باقاعده نکاح ئې شوې وي.

**منکه** :- (م +نک + کَه) (و ـــــ منقه).

**منګ** :- (مَن + ګ) (اس،مذ ، ج ـــ ونه) مګ ، د کوټې په چت کښې د نغري د پاسه سورے چې د لوګي او نورو مقاصدو د وتلو دپاره جوړولے شي. (هند ـــ مَګْ).

**منګ** :- (مَنْ + ګ) (اس ، مذ) اندازه ، مقدار ، (د عمر يا د قدو قامت) لکه : زما زوے ستا د زوے په منګ دے.

**منګ** :- (مَنْ + ګ) (صف، مذ، مو ـــه) ګنګس ، حېران ، مبهوت.

**منګ** :- (مَنْ + ګ) (اس ، جم) خټه چې سخته او کلکه شي.

**منګ** :- (مَنْ + ګ) (اس ، مذ) د ګډو بزو د يو مرض نوم.

**ـــــ تلل** :- حېرانه کېدل ، سخت حېرت کښې کېدل ، لکه : هغه داسې کتاب وليکۀ چې منګ ورته لاړم.

**ـــــ کېدل** :- حېران کېدل ، مبهوت کېدل ، ګنګس کېدل.

**منګاچه** :- (مُن + ګا + چه) (اس ، مو ، ج ـــــ چې) د پيشو د نوع د څناورو پنجه ، چې نوکونه لري. منګچه.

**منګار** :- (مُن + ګا + ر) (اس ، مذ) د ,, منګور،، بدل شکل دے. مار.

**منګار** :- (مَنْ + ګا + ر) (اس ، مو، ج ـــــ رې) نوکاره ، د نوکونو خراش ، د پيشو پنجه.

**منګارې** :- (مَنْ + ګا + رې) (اس ، مو، ج) د ,, منګار،، جمع ده .د ,, منګار،، بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ـــــ منګارې** :- (ـــــ مَنْ + ګا+ رې) (پ تر ، صف) نوکارې نوکارې ، په نوک يا د نوک په شان په تېرۀ څيز نوکارې شوې / شوي .لکه : مخ ئې منګارې منګارې ، تر دواړو سپېږمو ئې وينې روانې وې.

**منګاښه** :- (مُن + ګا + سه) (اس ، مو، ج ـــ ښې) درې غاښې ، هغه اله چې زميندار پرې غله صفاکوي (بوس پرې بره اولي چې غنم او بوس څېله بېل شي) دا اوږد لرګے وي چې په سر کښې ئې درې غاښونه وي.

**منګال** :- (مَن + ګا + ل) (اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) يو قسم لور ، چې فصل پرې ربېي ، د لو کولو يو قسم لور.

**منګال** :- (مَن + ګا + ل) (اس،مذ ، ج ـــــ ونه) منقل ، انګېټې.

**منګتياره** :- (من + ګ + ت + يا + ره) (اس ،مو ، ج ـــ رې) د انار ونه.

**منګټ خېل** :- (من + ګ + ټ + خې + ل) (اس ، مع) د سردي خېلو څانګه ده. (سردي خېل ، بقا خېل ، ولي خېل، اتمانزئ ، درويش خېل) وزير دي.

**منګچه** :- (من + ګ + چه) (اس ، مو ، ج ـــــ چې) ټونګه ، په مښوکه وهنه.

**ـــــ وهل** :- ټونګې وهل ، د مرغۍ يا مارغۀ په مښوکې سره وهل.

**منګر**:-(من + ګر) (حرف) د استثنا تورے دے .او ځينې غېر تعليم يافته خلق ئې ,,مګر،، په ځاے وائي.

**منګر** :- (من + ګر) (و ـــــ منګور).

**منګرکے** :- (من + ګَر + کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) وړوکے منګرے ، د تور او سور رنګ يو زهرناک چينجے .(ف ـــ کاغنو).

**منګرے** :- (من + ګ + رے) (اس ، مذ ، ج ـــ رې) د مارانو يو قسم چې ډېر زهرناک او مهلک وي.

**منګړ** :- (مَنْ + ګړ) (اس ، مذ ، ج ـــــ ان) کټمل ، مونګنې.

**منګـړې** :- (مـن + ګ + ړې) (اس ، مـو) کـورنۍ ، چرمښـکۍ ، چمچـورۍ ، ببيياتو

**منګړيته** :- (من + ګ + ړي + ت) (اس، مو ، ج ـــــ تې) ټېپر، شلغم.

**منګړيتـې**:- (مـن + ګ + ړي + تـې) (اس ، مـذ ، ج ـــــ تـې) ټېپـر ، شـلغم ، منګړيته

**منګل** :- (من + ګل) (اس ، مع) د پښتنو د يوې قبيلې نوم دے.

**منګل** :- (من + ګل) (اس ، مو ، ج ـــــ لې) پنجه ، چنګال ، لاس ، د څنګلې نه تر د ګوتو څوکو پورې هم لاس ته منګل وئيلے شي .د لېچو او لپو دوؤ برخو باندې مشتمل لاس منګلې ګڼلے شي .ځينې مټ سره يعنې پوره لاس ته هم منګل وائي.

**منګل** :- (من + ګل) (اس ، مع) د کرلاڼو پښتنو يوه قبيله ده .د دوېي دوه اهم ښاخونه دي يعنې ماسي خېل او جاني خېل .ميرل خېل چې اصلاً د ماسي خېلو يوه ذيلي قبيله ده په منګلو کښې زياته زوره وره قبيله ګڼلے شي.

**په ډګه ـــــ راتلل** :- کامياب راتلل ، کامياب راګرځېدل.

**منګل پاڼې** :- (من + ګل + پا + ڼې) (اس ،مذکر) د چنارونو يو قسم دے . چنار. (ف ـــ پنجه چنار).

**منګلوسه** :- (مَن + ګ + لو + سه) (اس ، مو ، ج ـــ سې) ډولۍ (د ناوې).

**منګلۍ** :- (من + ګ + لۍ) (اس ، مو) د زنانهؤ يو کالے دے .د وړو هلکانو ماشومانو د لاس کالے ، دينه.

**منګلې** :- (من + ګُ + لې) د ,, منګل ،، جمع ده.

> په درست عمر به ئې نۀ ووځې له ياده
> چــې ليدلې وي تا رو د باز منګلې (خوشحال)

**ـــــ کول** :- خپرې لګول ،مشت و ګرېبان کېدل، جنګ جګړه کول. محاورتاً کلک اودرېدل ،ټينګېدل ، په څۀ خبره يا عقيده مضبوط اودرېدل . اتفاق و اتحاد ساتل ، يو والے ساتل.

**ـــــ مروړل** :- محاورتاً لاسونه مړل ،افسوس کول، ارمان کول ، پښېماني څرګندول ،(عموماً د ,, مچ په شان ،، هم ورسره ور زياتوي).

**منګڼ** :- مَن + ګړ) (اس،مذ ، ج ـــ ان) کټمل ، مونګړن،منګوڼ.

**منګنے** :- (من + ګ + نے) (صف ، مذ) د کال دريم فصل ، د منې فصل ، مينے .د منې د فصل مېوه. د دريم فصل (د منې د فصل) وچ پټے.

**منګو** :- (من + ګو) (اس،مذ) کم عقل سړے ، بېوقوف.نادان ، ساده ، محاورتاً باچا

**منګوټے** :- (مُن + ګو + ټے) (اس ، مذ ، ج ـــــ ټي) د ,, منګے ،، تصغير دے. وړوکے منګے .ځينې خلق د ارټ لوټکې ته هم وائي چې وړوکے شان اوږد ښېضوي منګوټے وي.دنيا د ارټ منګوټے دے. (متل)

**منګوټکے** :-(من + ګو + ټ + کے) (اس ، مذ ، ج ـــ کي) د ,, منګوټے ،، تصغير دے

**منګوچه** :- (من + ګو + چه) (اس ، مو ، ج ـــ چې) پنجه ، منګاچه ، د پيشو (يا د پيشو غوندې د نورو څناورانو) پنجه.

**منګور** :- (من + ګو + ر) (اس ، مذ ، ج ـــــ ان) تازه زېږېدلے کوترے چې لاڅې سترګې نۀ وي پرانستې.

**منګور** :- (من + ګو + ر) (اس ، مذ ، ج ـــــ ان) تور مار ، وړوکے تېز حرکت کوونکے مار.

> تـــا چې زلفې پېچاپېچ سره ولول کړې
> په ګلونو کښې يو تور منګور خفته شۀ (خوشحال)

محاورتاً هغه سړے چې خلقو ته هېڅ بې هېڅه نقصان رسوي ـ پټ ګذار کوونکے دښمن ـ

تورمنګور ورستے کړه د فلاني کلي سړے ورومېې کړه ـ (متل)

**ــــ خورکه** :- (ـــ خ + ر + کَ) (پ تر، اس، مو، ج ـــ کې) (و ـــ مارخور یا مارخورکه) ـ

داحمـق نـتـداره کـړه غـواړي د بازښـکار
پـه لاس ناسـته ګرځـوي منګـور خورکـه

**منګوروله** :- (من + ګو + ر + و + لَه) (پ، تر، اس، مو) مشهوردارو، مارچوبه ـ

**منګوړ** :- (مَن + ګو + ړ) (اس، مذ، ج ـ ان) کټمل، منګڼ، منګړ ـ

**منګوړه** :- (مـن + ګ + و + ړه) (اس، مـو، ج ـــ ړي) مـنګڼ، بریـز، کیـک (کِي + ک) وړږه، کـیخـے (کـي + خـے) د غټـو بولـو یـو چیـنجے چې اکثـر ماشومان پـه عـذابوي ـ (ج ـ کیخي) ـ چې جنوبي پښتونخوا کښې ورته ,,ځیني،، کوخک هم وائي ـ

**منګوړے** :- (من + ګو + ړے) (اس، مذ، ج ـــ ړي) منګوټے، وړوکے منګے ـ

**منګول** :- (من + ګو + ل) (اس، مع) د منګولیا د ملک اوسېدونکي خلق مغول، مغل ـ

**منګولي** :- (من + ګو + لي) (صف، جم) یو خاص قسم نقش چې په لستوڼو جوړولے شي ـ

**منګولیا** :- (من+ګو+لي+ یا) (اس، مع) په ایشیا کښې یو لوے ملک چې د مغلو اولنے ټاټوبے وۀ ځکه مغولستتان هم ورته وائي ـ

**منګوهے** :- (من + ګو + هے) (اس، مذ) د ماشومانو د یو مرض نوم دے ـ چې په مرۍ (کومي) کښې ئې پړخوب پیدا شي ـ

**منګون** :- (من + ګو + ن) (صف، مذ، مو ـــ ه) سور، د سور رنګ، (غالباً د مېګون بدل شکل دے) ـ

**منګونه** :- (من + ګو + نَه) (صف، مو، ج ـــ نې) د منګون تانیث دے ـ

د کباب په څېر مې زړۀ منګونې شونډې
د رموز پـــه اور نیـولے کـــــړه وي (حمید)

**منګه** :- (من + ګ) (اس، مو، ج ـــ ګې) د ختو چیرړو نه جوړ شوے وړوکے شان غونډ څیز چې د مرز د پنجرې په سرکښې لګولے شي ـ د مشک لرګین پیوند

**منګي** :- (مَن + ګي) د ,,منګے،، جمع ده ـ د منګے بدل شکل چې د مغیرو الفاظو سره راځي ـ

**د ـــ ډز تلل** :- محاورتاً: اوازه خوورېدل، خبره مشهورېدل ـ متـل دے: منګے مات شو که مات نۀ شو خو ډز ئې لاړو!

**منګي خېل** :- (مُن + ګي + خې + ل) (اس، مع) د شبي خېلو څانګه ده ـ (شبي خېل، منظر خېل، عزیز خېل، نظر خېل، ایمل خېل بهلول زئ) محسود دي ـ

**منګیر** :- (مَن + ګي + ر) (اس، فا، صف، مذ، مو ـــ) راګیـر، ګرفتـار، مصروف، (په کار وغېره کښې) کښېوتے ـ نښتے ـ محاورتاً: غرق، ډوب، ورک او نور ـ

**منګیرتیـا** :- (مَـن + ګـي + ر + ت + یـا) (پ تـر، اس، مـو) مصـروفیت، بوختوالے ـ په کار کښې نښتېدنه ـ

**منګیرول** :- (من + ګي + ر + وُل) (مص) ګرفتـارول، بندول، مصروف کـول کښېستل، بندیوان کول ـ

**منګیرېدل** :- (مـن + ګـي + رې + دل) (مص) ګرفتارېـدل، مصروف کېـدل، ګېرېدل، کښېنستلے کېدل، بندیوانېدل ـ

**منګیـزئ** :- (مـن + ګـي + زئ) (اس، مـع) د بـازئیو څانګـه ده ـ (بازي، هارون خېل، سناتیه) کاکړ دي ـ

**منګي زئ** :- (ددغه) (اس، مع) (خانه بدوش اولس دے) د لهرزئ څانګه ده ـ موسٰی خېل دي ـ د منګي زئ قبیلې څانګې دادي: نېکنام زي، خائیزي، برهم زئ، سدو زئ، ملک زئ او احمد زئ ـ

**منګیل** :- (من + ګي + ل) (اس، مذ، ج ـــ ونه) د کبانو (مهیانو) د نیولو کُنډه ـ

**منګے** :- (من + ګے) (اس، مذ، ج ـــ ګي) د مني ګړورے، منګټے بره ـ

**منګے** :- (من + ګے) (لاحقه) د پښتو لاحقه ده ـ د منګ یا د قد معنٰی ورکوي ـ

**غر ــــ** :- (غَر ــــ) (پ تر، اس، مذ، ج ـــ ګي) د غر هومره قد جوثې واله، کوه پېکر

**منګے** :- (مـن + ګے) (اس، مـذ، ج ـــ ګـي / ان) د اوبـو مشـهور غونډ خاورین لوښے ـ

**ــــ مات** :- (ــــ مـا + ت) (پ تر، اس، مذ) د هلکانو د یـوې لـوبې نوم دے ـ

**غوړ ــــ** :- (غ + وړ ــــ) (پ تر، اس، مذ) هغه منګے چې غوړ کړے شوے وي په داسې منګي اوبـۀ نـۀ حیصاربږي ـ محاورتـاً هغـه څـوک چې د نصیحت وغېره اثر پرې نۀ کېږي ـ

**منل** :- (م + نل) (مص) قبلول، تسلیمول، آمنا کول، منښته کول، نذر منل ـ

**ــــ کول** :- منل، تسلیمول، په خبره عمل کول ـ

په دا هـومره هوښیارۍ هسې هېښ یم
څوک چې زهر راته نوش کا هم منل کړم (خوشحال)

**بده ــــ** :- (ب + د ـــ) بد وړل، بده پرې لګېدل، په څۀ خبره وغېره) خفه کېدل

**په ځان ــــ** :- په خپل سر تسلیمول ـ لکه: تاوان په ځان منل ـ

**څۀ کار سره ــــ** :- څۀ کار یا څیز یا موسم یا حالاتو سره عـادت کېدل، اوپـره والے لرې کېدل ـ

**خبـره ــــ** :- (خ + ب + ره ـــ) په خبره (نصیحت وغېره) عمـل کـول، خبـره (رښتیا یا حقه) تسلیمول محاورتاً: منښتې کول، مخ نۀ اړول، انکار نۀ کول ـ

**د هیچانۀ ــــ** :- د هیچا په نصیحت غوږ نۀ کښېښودل ـ خود سري کول، خپله رائې یا خوښه کول، خپله کول، ضد کول ـ

**روپۍ ــــ** :- (د چا په سر) انعام مقررول، د انعام ورکولو وعده کول ـ (عموماً د چا په سر یعني د چا د قتلولو په بدله کښې یا رشوت بډو دپاره هم استعمالېږي) ـ

**ګډ ــــ** :- (ګډ ــــ) ـ

**مېښه ــــ** :- (مې + ښه ــــ) د ګډ یا مېښې نذر منـل ـ د ګډ یـا د مېښې وغېره غاړه کښېښودل ـ دواړه د څۀ کار د کېدلو یا مراد پوره کېدلو په حالت کښې وي ـ خو اول یعني صرف او صرف د الله پاک دپـاره یا په پاک نوم وي او چاته غاړه کښېښودل د بندګانو سره خبره وي ـ

**منلو** :- (م + ن + لو) د ,,منل،، بدل شکل دي چې د مغیره ؤ تورو سره راځي ـ

**د ــــ خبره** :- (د ـــ خ + ب + ره) (پ تر، اس، مو، ج ـــ رې) داسې خبره یا کار چې د تسـلیمولو یـا پرې د عمـل کولـو وړ وي ـ (عموماً د نفي په شکل کښې استعمالېږي ـ یعني د نۀ منلو خبره یا کار یا د استفهام په انداز لکه: دا خبره د منلو ده هم؟

**منلے** :- (م + ن + لے) (فعل) ,,منلے شوے،، په معنٰی کښې راځي یعني تسلیم شوے، مسلمه ـ لکه: دا یو منلے شوے حقیقت دے ـ د اثبات د جواب دپـاره راځـي ـ لکـه: تسلیم، درست، صحیح، محتـرم، غـوره، مقبول، قبول شوے لکه: منلے لیکوال یا عالم یا شخصیت یا لوبغاړے یا بل څۀ ـ

**ـــــ کېدل** :- تسليم کېدل ،عمل پرې کېدل ، محاورتاً اوربدلے کېدل ، سفارش ،چلېدل ، خيال ساتلے کېدل۔

**منم** :- (م + نم)(فعل) د ,,منل ،، مصدر څخه د حال د واحد متکلم صيغه ده ۔زۀ تسليمول ۔ عموماً د بل سرې د خبرې د صداقت د اظهار دپاره وئيلے شي۔ قبلوم ، عمل کوم۔

**ـــــ دې / مو** :- (جمله) د شاباسي کلمه ده۔شاباس۔افرين ، زوره ور کار دې وکړ۔ډېر ښۀ ، ډېر اعلیٰ۔

**مننه** :- (م + ن + نَه)(حمص) شکريه ، شکر گذاري۔

**ښۀ ــــ** :- (ښه ـــ)(پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ نې) شکر گذاري ، شکريه ادا کونه۔

**ـــــ کول و دچا** : شکريه ادا کول ، شکر گذاري ، ښکاره کول۔

**منو** :- (م + نو)(فعل) د ,,منل ،، مصدر څخه د حال (جمع متکلم) صيغه ده ۔ په حالت فاعلي کښې۔

**منو** :- (م + نو)(هـ ، اس ، مع) د هندوانو يو مشر ، چې د هندوانو د ماړۀ ئې د قانون کتاب جوړ کړے وو۔منو اصلاً وړومبي انسان ته وائي۔خو د هندوانو په عقيده کښې څوارلس منوگان دي۔څۀ پيدا شوي دي او څۀ به لا پيدا کېږي۔

**منو** :- (م + نو)(اس ، مذ) د ,,من ،، (په معنیٰ د ,,زړۀ ، بدل شکل دے ۔د مينې په طور يا د تصغير په طور استعمال شوے دے ۔زړگے۔

دغه تندر دې نازل کړه خدا ے په خونه

تـۀ چـې عشق گنې اسـان زما منو (حسين)

**منوال** :- (من + وا + ل)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه لرگے چې جولاگان اوډلي شوې کپړه پرې نغاړي۔ محاورتاً طور طريقه ، انداز ، وضع دستور ، رسم۔

**په دې ـــ** :- (پ + دې ـــ)(عپ ، تر ، تف) په دې طريقه، په دې شکل۔

**منوټے** :- (م + نو + ټے)(اس ، مذ ، ج ـــ ټي) د ,,منو ،، تصغير دے ۔ زړگے ، وړوکے شان زړۀ ، يا د مينې په طور وايۀ شي۔

کۀ ئې هر ساعت وهي هزار کوڅړې

د حسين په تندي وي منوټيه اړونې (حسين)

**منور** :- (مُ + نو + ور)(ع ،اس،مذ ، مو ـــ ه) نور ورکړے شۀ ۔نور واله ، نوراني ، روښانه ، ځلېدونکے ، پرقېدونکے۔

**منوره** :- (مُ+نو+و + ره)(ع ، اس ، مو) د ,,منور ،، تانيث دے ۔عموماً د مدينې ښهر نوم سره د احترام په طور راځي۔مدينه منوره۔

**مدينه ــــ** :- (م + دي + نَه ـــــ)(ع ، اس ، مو) د ,,مدينې ،، ښهر سره د ,,منوره ،، (نوراني ، نور واله) لفظ احتراماً راوستے شي ۔ځکه چې حضور پاک صلی الله عليه وسلم د مکې معظمې نه دغې ښهر ته هجرت کړے وو او پاتې عمر ئې هلته تېر کړو۔ددغه ښهر پخوانے نوم ,, يثرب ،، وو۔

**منورين** :- (م + نو + و + ري + ن)(ع،اس، ج) د ,,منور ،، اسم جمع ده ۔ تعليم يافته خلق ، عالمان۔د يوې فرقې نوم هم دے۔

**منوط** :- (م + نو + ط)(ع، صف ،مذ ، مو ـــ ه) ځوړند ، تړلے ، منحصر۔

**منوموني** :- (م + نو + م + ني)(اس، مع) خودبيني، ځان تـه څۀ وئيل،انانيت، کبر

**منونکے** :- (م + نو + ن + کے)(اس ، فا ،مذ ،ج ــــ کي) منلوواله،تسليمونکے ، قبلوونکے۔

**منونے** :- (م + نو + نے)(و ــــ منونکے)۔

**منوي** :- (من + وي)(ع ، صف) نيت شوے ، اراده شوے ، هغه څيزونه چې نيت ئې شوے وي۔هغه چې په اراده کښې وي۔

**منويات** :- (من + وي + يا + ت)(ع ، اس ، ج) د ,,منوي ،، جمع ده۔

**منه** :- (مَ + نَ)(فعل) د ,,منل ،، مصدر څخه د استمراري امر صيغه ده ۔تل منه ، تل تسليموه يا قبلوه ، اومنه۔

**منه** :- (مَ + نَ) د ,,منع ،، تلفظي شکل دے ۔ (په پښتو کښې د ع غږ ډېر سپک او هوار وئيلے شي خو د ,,منه،، په شکل کښې ليکل درست نۀ دي ۔علاوه له دې د ,, منع ،، تکے په پښتو عموماً د ,,مَ + نِ ،، په شان هم تلفظ کېږي)۔

**منه** :- (م + ن + ه)(و ـــ منا)۔

**منه** :- (مَ + نَ)(اس ، ج) د ,,من ،، بدل شکل دے ۔چې عموماً د شمېر اسمونو سره راځي۔لکه : لس منه غنم۔

**منه** :- (م+ (نْ) + نَ)(اس،مو،ج ـــ نې) د مينه بدل شکل دے۔

لابـــه کلـــه حميد منه لېونے کا

په کاتۀ شو ورته کسي د ځنځير کج (حميد)

**منها** :- (مِنْ+ ها)(ع ، اس ،مذ)(ع) د من او ها مرکب دے ۔د هغې نه ، د هغې څخه۔تفريق،منفي د تفريق يا د منفي علامت (ـــ)۔

**ـــــ کول** :- تفريق کول ، کمول ، د يو رقم نه بل کوم رقم اېستل۔

**منهاج** :- (مِنْ + ها + ج)(ع،اس،مذ ، ج ــــ ونه) لويه لار ، ارت سړک، شاهراه ,,منهج ،، هم ورته وائي۔

نفس شيطان درسره مله موئے غليمان دي

لـــه منهاجـــه دې جار باسي و خلاف ته (حافظ)

**منهائي** :- (مِنْ + ها + ئي)(اس ، مو) منها کونه ، تفريق،کمونه، کټوتي۔

**منهدم** :- (مُن + هـ + دِمْ)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) نړېدلے ، راغورځېدلے (عمارت وغېره) مسمار،خراب ، وران ، برباد۔

**ـــــ کول** :- عمارت وغېره رانړول۔مسمار کول۔ورانول۔

**منهزم** :- (مُن + هـَ + زِم)(ع ،اس ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هزيمت خوړونکے، شکست خوړونکے، ماتې خوړونکے ، د جنگ نه تښتېدونکے۔

**ـــــ کول** :- شکست ورکول ،ماتې ورکول ۔تښتول (د جنگ د ميدان نه /څخه)۔

**ـــــ کېدل** :- شکست خوړل ،ماتې کول ،د جنگ د ميدان نه تښتېدل۔

**منهضم** :- (مُن + هَ + ضم)(ع ،اس، صف، مذ، مو ـــ ه) هضم کېدونکے ، هضمېدونکے۔

**منهمک** :- (مُن + هَ + مکْ)(ع ، اس ، صف، مذ ،مو ـــ ه) انهماک لرونکے ، په کار کښې بوخت مصروف ، په کوم کار کښې ډېر زيات کوښښ کوونکے۔

**منهي** :- (مُن + هي)(ع) هغه کار چې په شروع کښې ئې نفي شوې وي ۔منع کړے شوے کار ،بدکار ،خراب کار ، ناجائز کار۔

**منهيات** :- (مُن + هيْ + يا + ت)(ع ، اس ، ج) د ,, منهي ،، جمع ده ۔منع کړے شوي کارونه ، په شرع کښې منع شوي کارونه۔

**منۍ** :- (مَ + نۍ) د ,, منے ،، تانيث دے ۔لکه : دوه منۍ بوجۍ۔

**مني** :- (م + ني)(ف،اس، مو) غرور ،کبر، لوئي۔

دے چــې اصـــل د يوه قطره مني ده

په دا هسې رنگ وجود دې څۀ مني ده (خوشحال)

**مني** :- (مَ + ني)(ف ،اس ، مو) هغه سلېښناکې سپينې اوبۀ چې د سړي د اندام نه د خلاصېدو په وخت راووځي۔نطفه ، مردي۔

**مني** :- (مَ + ني)(فعل) د ,, منل ،، مصدر څخه د حال (غائب) فعل ، تسليموي ، قبلوي۔ لکه : فلانے زما خبره مني / نۀ مني او نور۔

**مُني** :- (م + ني) د ,,منے ،،جمع ده ۔ د ,,منے ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**مني** :- (مَ + ني)(انگ،اس،مو) پیسې ټکي،دولت، پنگه.

**د ـــ تبه** :- (د ـــ ت + بَ)(پ تر،اس،مو، ج ـــ بې) هغه تبه چې د مني په موسم کښې راځي.ملېریا.

**مني ايچر** :- (م + ني + ا ے + چر)(انگ ، اس ، مذ) هغه نقاشي چې په ډېره زیاته وړه پیمانه وکړے شي.وارۀ وارۀ تصویرونه یا نقشونه (چې عموماً په کتابونو کښې وي).

**منيـر** :- (مُ + نـي + ر)(ع ، صف ، مـذ ،موـــه) نـور والـه ، روڼ ، روښـان ، ځلېدونکے، رڼا ورکوونکے.

**منيځ** :- (م + ني + ځ)(پ تر، صف ، مذ ، مو ـه) من سره تعلق لرونکے ، من ته منسوب لکه : منيځ بوج يا دوه منيځ بوج يا کورے يا پنډ پرے.

**منيـع** :- (م + نـي + ع)(ع ، صف ، مـذ ، مـوــه) منـع کـوونکے . محاورتـاً محکمه قلا یا عمـارت چې دښمن په کښې نۀ شي داخلېدلے.(دښمن د دننه راتللو نه منع کوي).

**منيف** :- (مُ + ني + ف)(ع ، اس ، صف ، مذ ،موــه) پاک ، بزرگ ، لوړ

**منيم** :- (مَ + ني + م)(هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) منشي ، حساب کتـاب لرونکے ، بابو ، اکاؤنټېنټ.

**منيمم** :- (مي + ني + مم)(انگ ، صف) کم نه کم ، د لږ نه لږ (مقدار يا تعداد وغېره).

**ـــ ميکسيمم ترمامېټر** :- (ـــ مي+ک+سي+مم + تر+ما+مي+ټر)(انگ ، تر ، اس مذ ، ج ـــ ونه) هغه ترمامېټر (حرارت پېما اله) په کوم کښې چې د زياته نه زياته او کمه نه کمه گرمي معلومولے شي.

**منيه** :- (مُن + يَه)(ع ، اس ، مع) د فقهې يو مشهور کتاب چې په کښې د نمونځ په حقله مسئلې دي.پوره نوم ئې ,, منية المصلي ،، دے.

**منيه خېل** :- (مُن + يَ + خې + ل)(اس،مع) د حسن خېلو څانگه ده .(حسن خېل، ميتا خانخېل ، کوکي خېل) افريدي دي. خدوخېل او ماشي خېل د منيه خېلو څانگې دي.

**منے** :- (م + نے)(اس، مذ) امېل ، هار.

د تجنيس پائيلې څوړې ئې په پښو کړې
د تـــرصيع منے پـــــه غـاړه اوږد دراز (خوشحال)

**منے** :- (م + نے)(اس ، مذ ، ج ـــ ني) د خزان موسم ، د خريف فصل.

**ـــ خوړل** :- د مني فصل رېبل ، پټي د مني د فصل نه اوزگارېدل.

**ـــ کرل** :- د مني يعني د خريف د موسم کرونده کول . لکه : منے په نېک خواه کره اوړے په بد خواه. (متل).

**منے** :- (م + نے)(اس ، مذ، مو، ج ـــ ني) منونکے، قبلوونکے، فرمان بردارہ ، پرهېزگاره ، وړوکے هلک.

**ـــ که نه ؟** :- (جمله) د کوم ناوياتـه يا زورور کار کولو په موقع وئيلے شي. لکه څوک يو گران کار کولو کښې کامياب شي نو مخاطب تـه وائي چې مني که نه ! څنگه مې دغه گران کار اوکړو.

**منۍ** :- (مُ + نۍ) د ,, منے ،، تانيث دے.

**منے** :- (م + نے)(صف ، مذ ،موـــ ني) من سره تعلق لرونکے ، مـن تـه منسوب . لکه : لس منے پېټے.

**منېجر** :- (م + ني + جر)(انگ،اس،مذ،ج ـــ ان) انتظام کوونکے ، بندوبست کوونکے ،منتظم . د بېنک ، هوټل يا کارخانې وغېره افسر.

**منېجري** :- (م + ني + ج + ري)(انگ ، پ تر، اس ، مو) د منېجـــــر کار،انتظار کونه.منتظمي ، د هوټل بېنک يا کارخانې وغېره افسري.

**منۍ** :- (مَنۍ)(اس ، مذ ، ج ـــ ان) مېږه ، پسۀ ، ليرے ، منيـا ، گډه، بزه يا وزه. د من ، د وزۍ زکات همان دے په ادميان (خبرالبيان).

**منپاکي گل** :- (م +نا+ کي +گل)(اس ، مذ) يو قسم بوټے دے.چې زېړ گلونه نيسي.

**منغوني** :- (مه + نه + غو + ني)(اسم،واحد ، جمع ، مونث) مرغونې ، کاکوړه ، پوپانو ، منه غوني ، حنظل. نباتـاتي نـوم کوکـومس کولـو سـينتس (Cucumis Colicyntiiys).

**منغـون ځـرے** :- (م + ڼ + غـون+ځ+ړے)(پ تر،اس،مـذ ،ج ـ ړي) د مرغـوني ځړے يا ځيے ، تخم حنظل.

**من کت** :- (منِ + کت)(و ـــ منکت).

**منه** :- (م +نه)(اس،مو،ج ـــ ړې) سبو،سېب.

**ـــ غوني** :- (ـــ غو + ني)(پ تر،اس ، مذ ، ج ـــ ني) مرغـوني ، کاکوړه ، پوپانو ، حنظل.

**منې خېل** :- (مَ + نې + خې + ل)(اس ، مع) د جنکي خېلو څانگه ده. (جنکي خېل ،برسوليزئ ،بائي زئي،اکوزئ) يوسفزي دي.

**منې** :- (مَ + نې)(اس،مو، ج) د ,, منه ،، جمع ده. لکه : که شپه تيارۀ ده خو منې په شمار دي. (متل). د ,, منه ،، بدل شکل دے چې دمغېره ؤتوروسره راځي.

چې څوک طمع د وفا کا له مجازه
گويا غواړي د منې لذت له پيازه (علي خان)

**منيا** :-(مَنْ + يا)(و ـــ منۍ).

**منيځه** :- (مه + نې + ځه)(اسم ، واحد ، مونث) د ناوې لـه وادۀ دوه مياشـتې پس مور کره راتلل او مياشت تېرولـو نـه پس د مېړۀ کره د تللو په وخت د مور پلار له طرفه ورکړې تحفې.

**مو** :- (مُو (مُ)(اس) ضمير دے د جمع متکلم او د جمع حاضر (مخاطب) دپاره راځي. ,,موږ ،، ,,زموږ ،، ,,تاسو ،، او ,,ستاسو ،، معنې گانې ورکوي.

**ـــ باف** :- (ـــ با + ف)(ف تر،اس ، مذ ،ج ـــ ونه) هغه چيرړه يا فيتـه وغېره چې زنانه په وېښتو کښې ورکړي او بياکمځۍ کوي.

**ـــ به مو** :- (ـــ ب + مـو)(ف ، تر ، صف) وېښتۀ په وېښتۀ ، مکمـل يو شان والے ، پوټې په پوټې.

**سرِ ـــ** :- (س + رِ / رې ـــ)(ف تر، صف) د وېښتۀ سر . مجازاً ډېر لږ شان ، د وېښتۀ د سر هومره يو پوټسکے.

**ـــ شگاف** :- (ـــ ش + گا + ف)(ف تر، صف ، مذ ، مو ـــ ه) وېښتۀ چوؤنه ، باريک بيني ، دقيقه شناسي ، باريکۍ ته رسېدونکے.

**ـــ شگافي** :- (ـــ ش + گـا + فـي)(ف،تـر،اس، مـو) وېښتۀ چوؤنـه ، باريک بيني ، باريکۍ را اېستنه ، دقيقه شناس.

**ـــ قلم** :- (ـــ ق + لم)(عف ، تر،اس، مذ،ج ـــ ونه) د وېښتـو قلم ، برش ، د نقاشۍ يا د مصورۍ برش.

**موي** :- (مو + ي)(ف،اس،مذ) وېښتۀ.

**مواثيـق** :- (م + وا+ ثـي +ق)(ع ، اس،ج) د ,, ميثـاق ،، جمـع ده .وعـدې ، لوظونه ، عهدونه.

**مـواج** :- (مـو + وا+ ج)(ع،صف،مذ ، موـــه) موجونـه وهـونکے ، چپـې وهونکے ، په چپو ، څپاند.

**مواجـب** :- (م + وا+ جـب)(ع،اس،ج) د ,, موجـب ،، جمـع ده . تنخواگـانې ، مشاهرې ، اجرت ، مزدوري. (د واحد پـه معنٰی کښې هم استعمالېږي. ,,ماجب ،، تلفظ کېږي).

**ـــ خور** :- (ـــ خو + ر).

**ـــ خوار** :- (ـــ خ + وا + ر) يا (ـــ خا + ر)(عف،تر،اس ،مذ ، ج ـــ ان/ خواره) مواجب اخيستونکے ، تنخواه دار ، ماجب اخيستونکے.

**مواجه** :- (مُ + وا + جه)(ع ، صف) مخ په مخ ، مخامخ ، روبرو.

**ـــ کېدل** :- مخامخ کېدل ، روبرو کېدل.

**بال ــــ** :- (ب + ل ــــ) (ع ، تر ، تف) مخ په مخ ، په مخامخه ، روبرو ، لکه : بالمواجهه خبرې کول.

**مواجهــه** :- (مُ + وا + جَ + ه) (ع ، اس ، مـو ، جـــ هـې) مخـامخ کېدنـه ، رو بـرو کېدنه.

**ــــ کول** :- مخامخ کېدل ، روبرو کېدل.

**مواخات** :- (م + وا + خا + ت) (ع،اس) وروروليِ ، د ورونو په شان مينه محبت يا تعلق ، برادري.

**مواخذه** :- (مُ + وا + خ + ذه) (ع ، اس،مو، جـــ ذې) اخذ کونه ، نيونه ، گرفت ، تپوس ، جواب طلبي ، بازپرس.

**ــــ کول** :- جواب غوښتل ، باز پرس کول ، حساب کتـاب غوښتل ، تپـوس پوښتنه کول.

**ــــ کېدل** :- تپـوس کېـدل، جـواب طلبي کېـدل ، بـاز پـرس کېـدل ، تپـوس کېدل ، پوښتنه کېدل.

**قابلــــ** :- (قا + ب + ل ــــ) د تپـوس وړ ، د بـاز پـرس کـولـووړه. هغـه کـار يـا عمل چې پوښتنه ئې کېدے شي.

**مواد** :- (م + وا + د) (ع ، اس ، ج) د ماده جمع ده. خو د واحـد مـذکر پـه طـور هـم استعمالېږي. اسباب ، سامان ، څيزونـه ، مـادي څيزونـه . د ننکـۍ يـا د خراب شوي زخم ويني ځوې.

**اوم / خامــــ** :- (او + م / خا + م ــــ) (عپ،تر،اس، مذ) کچه سامان ، هغـه څيزونه چې خپل اصل فطري حالت کښې وي او لاترې بـل څـهٔ څيـز نـهٔ وي جوړ شوے.

**تعميراتيــــ** :- (تع + مي + را + تي ــــ) (عف ، تر،اس) هغه څيزونـه کـوم چې د عمارتونو په جوړولو کښې پکارېږي.

**حربيــــ** :- (حر + بي ــــ) (عف ، تر،اس) هغه څيزونـه يـا سـامان کـوم چې په جنگ کښې پکارېږي.

**خوراکيــــ** :- (خُ + را + کي ــــ).

**غذائيــــ** :- (غِ +ذا + ئي ــــ) (عپ ، تر،اس،ج) هغـه څيزونـه کـوم چـې د خوراک دپاره پکارېږي. د غذا په طور استعمالېدونکي څيزونه.

**صناعتيــــ** :- (ص + نا + ع + تي ــــ) (عف ، تر ،اس مذ) هغه څيزونـه کـوم چې په صنعتونو کښې پکارېږي.

**موارد** :- (م +وا+ رِد) (ع،اس، ج) د مـورد جمـع ده. مـوقعې. لکـه : پـه مختلفـو مواردو کښې.

**موازن** :- (م + وا + زِن) (ع ، صف ، مـذ ،مو ــــ ه) هـم وزنـه ، پـه وزن کښـې سـره برابر (بديع) په شعر کښې د شاعر ، ټول اجزاء د يو شان قافيې راوستنه.

**موازنه** :- (م + وا + ز + نَه) (ع،اس،مو،جـــ نې) سره وزن کونه ، تلنه. مقابلـه ، تول ، وزن. برابرے ، برابر وزن لرنه.

**ــــ دلاسه اېستل** :- بې تولې کېدل. توله نهٔ پاتې کېدل.

**ــــ کول** :- په خپله کښې وزن کول. هم وزنه کول مقابله کول ، تـول کـول ، پـه تول کښې فرق معلومول.

**ادبيــــ** :- (ا + د + بي ــــ) د ادب پـه لحـاظ سـره يـو بـل سـره مقابلـه کونـه او غوره او لر معلومونه.

**تجارتيــــ** :- (ت + جا + ر + تي ــــ) پـه تجـارت کښـې برابـرے ، د تجـارت پـه لحاظ سره تول ، د تجارت په لحاظ سره په خپله کښې مقابله.

**دقوتونوــــ** :- (د + قو + و + تو + نو ــــ).

**دقواؤــــ** :-(د + ق + وا + ؤ ــــ) د قوتونو پـه خپلـه کښـې (يـو شـان تـول، پـه خپله کښې د قوتونو مقابله او تـول اخيسـتنه. دوه يـا زيـات قوتونـه سـره پـه توله کول.

**مـوازي** :-(م + وا+ زي) (ع ، صـف) برابـري ، يـو شـان ، لکـه پـه مـوازي ډول . متوازي (دفتري اصطلاح) پيسو ټکو يا جريونو سره استعمالېږي. لکه : موازي دولس انې.

**موازياً** :- (م + وا + زي + ياً) (ع ، تف) په موازي ډول ، په يو شان انداز. د برابرې په طور

**موازين** :- (م + وا + زي + ن) د ,, ميزان ،، جمع ده.

**مواس** :- (م+ وا + س) (اس،مذ،جـــ ان) چغلخور ، تمام ، مچۍ، زنبـور ، ډمبر يا ډمبور ، محافظ ، سردار،غل ، شوکمار ، غوره ، څرگند او څار.

شمس و قمـر که گل کړم برابر
په همه ؤ کښې زما دلبر مواسه (احمد شاه بابا)

دا معنې قياسي دي.

**ــــ نيول** :- پناه اخيستل،حفاظت کښې راتلل.

**مواسات** :- (م + وا + سا + ت) (ع ، اس) امداد (کونه) ، مـال او بـدن سره د چا غمخوري (کونه).

**مواسم** :- (م + وا + سم) د ,, موسم ،، جمع ده. موسمونه.

**مواسه** :- (م + وا + سه) (اس، مو، جـــ ې) افسانه،قصه ، په سر تېره گپ شپ.

**مواشــي** :- (م + وا + شـي) (ع ،اس ، ج) د ,, ماشـيه ،، مويشـي ، جمـع ده . څاروي ، مثلاً غوا مېښې ، اسونه وغېره. (اصلاً ددې معنې د ډېر بچي راؤړونکي حېوان ده).

**مواصلات** :- (م + وا + ص +لا+ ت) (ع ، اس ، ج) د يـو ځـا ے نـه بـل ځـا ے تـه د تللو يا د مال د لېږلو رالېږلو ذريعې.

**سمندريــــ** :- (س +من + ر + ري ــــ).

**بحريــــ** :- (بح + ري ــــ) د سمندري جهـازونو يـا بېړۍ وغېره چې د يـو ځـا ے نه بل ځا ے تگ يا مال وغېره د لېږلو دپاره پکارولے شي.

**هوائيــــ** :- (هـ +وا + ئي ــــ) د هوائي جهازنو ذريعه ، چې د يو ځـا ے نـه بل ځا ے ته تگ يا سامان وغېره لېږلو دپاره پکارولے شي.

**مواصلاتي** :- (م + وا + ص +لا+ تي) (عف ، تر، صف) مواصـــلاتو ســـره تعلق لرونکے ، مواصلاتو ته منسوب.

**ــــ سياره** :- (ــــ سي + يا + ره) (عف ، تر ، اس ، مو جـــ رې) هغـه مصنوعي سياره چې د پېغامونو وغېره د خوورلو دپاره پکارولے شي.

**مواصلت** :- (م + وا + ص + ل + ت) (ع ، اس ، مـذ ، جـــ ونـه) وصـل کونـه ، ملاوېدنه ، ملاقات کونه ، يو بل سره جوختېدنه.

**مواضـع** :- (م + وا + ضـع) (ع ، اس ، ج) د ,, موضـع ،، جمـع . مقامـات ، کلـي ، باندې

**مواظب** :- (م + وا + ظب) (ع ،اس ، مذ ، مو ــــ ه) محتاط،متوجه،خيال ساتنه ، په پابندۍ کار کوونکے.

**مواظبت** :- (م + وا + ظ + بت) (ع ، اس ، مذ) يو کار په ډېرې پابندۍ سره کونه . په کار کښې لگيا اوسېدنه ، په استقامت سره کار کونه.

**ــــ کول** :- په يو کار کښې استقامت کول ، يو کار کښې برابر مشغول اوسېدل . يـو څيـز لـه توجـه ورکـول يـا د لـرې نظـر لـرل ، نگرانـي يـا نگهباني کول.

**مواعدت** :- (م + وا + ع + دت) (ع ، اس ، مذ) په خپلـه کښـې يـو بـل سره وعده کونه په خپله کښې لوظ قول کونه.

**مواعظ** :- (م + وا + عظ) (ع، اس ، ج) د ,, موعظه ،، جمع ده.

**مواعيد** :- (م + وا + عي + د) (ع ، اس ، ج) د ,, ميعاد ،، جمع ده.

**موافق** :- (م + وا + فق) (ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) مطابق مطابقت لرونکے ، يو شان يکسانه ، يوه عقيده يا رائې لرونکے ،مناسب، لايق.

خرد سرو زرو د زين نۀ دے لايق
ښــۀ ځــړے ورلره بويه موافق (خوشحال)

**ـــباد** :- (ـــبا + د )(عپ ، تر،اس ، مذ ، ج ـــونه) هغـه بـاد چـې د ويونکي د ضرورت مطابق وي. محاورتاً موافق حالات ، مناسب حالات.

**ـــ کېدل** :- يو شان کېدل ، سمېدل ، مطابق کېدل ، يو شان رائې يا عقيده وغېره خپلول.

**موافقت** :-(م + وا + ف + قت )(ع،اس، مذ ، ج ـــونه) مطابقت ، يو شان والے، يکسانيت، مناسبت، دوستي ، اتفاق ، يو شان عقيده يا رائې لرنه.

**ـــ سره لرل** :- د دوؤ يا زياتو کسانو په خيالاتو او عمل وغېره کښې يو شان والے لرل.

**ـــ کول** :- خيال يا رائې وغېره يو کول ، مطابقت کول ، ملگرتيا کول ، همخيالي کول.

**موافقه** :- (م + وا + ف + قَه )(و ـــ موافقت ).

**موافقه** :- ( م + وا + فِ + قَ )(صف،اس،مو، ج ـــ قې ) د ,, موافق ،، تانيث دے.

**ـــ رائې** :- (ـــرا + ئې )(عپ ، تر، اس، مو،ج ـــ گانې) هغه رائې چې د تجويز کوونکے د رائې سره سمه وي .(د مخالفه رائې په مقابله کښې) يو شان رائې

**ـــ رائې ورکول** :- د تجويز کوونکے د رائې په تائيد کښې رائې ورکول ، يو شان رائې څرگندول.

**مواقع** :- ( م + وا + قع )(ع ،اس،ج ) د ,, موقع ،، جمع ده .موقعې ، ځايونه ، مقامات ، خاص وختونه ، خاص ځايونه.

**مواقف** :- ( م + وا + قف )(ع ، اس ، ج ) د ,, موقف ،، جمع ده .موقفونه ، د اپسار بدولو ځايونه.

**موالي** :- ( م + وا + لي )(ع،اس،ج ) د ,, مولي ،، جمع ده.

**موباراخېل** :- (مو+با + را + خې + ل )(اس ، مع ) د باش خېلو څانگه ده .(باش خېل،شراکي،گلي د آدم خېل ) افريدي دي.

**موبائل** :- (مو + با+ ئ+ ل )(انگ ، صف ) خوځنده ، په حرکت کښې ، گرځنده ښورند

**آټوـــ** :- (آ + ټوـــ )(انگ ، تر ، اس ، مذ ) هغه څيز چې پخپله حرکت کوي.موټر لارۍ وغېره.اټوموبيل.

**موبد** :- (مو + بد )(ع ، اس ،مذ ، ج ـــ ان) د هور نمانځلو عالم ، د اتش پرستو عالم ، دانشمند ، حکيم ، فلسفي.

**موبر** :- (م + ب + بر )(ع ، تف ) ابدي ، تلوالے لرونکے ، همېش له پاتې کېدونکے ، لکه : حبس موبد ، عمر قېد.

**موبلېل** :- (مو + ب + لي + ل )(انگ،پ تر، اس، جم) د ,, موبل ائل ،، بدل شکل دے. هغه ټېنگ تيل چې د مشينونو د پرزو مېنځ کښې ورکولے شي.چې دغه پرزې د سُولېدو نه بچ شي.

**موبيل** :- (مو+ بي + ل )(و ـــ موبائيل ).

**موت** :- (مو + ت )(ع ، اس ، مذ ) مرگ ، مرگے ، اجل ، قضا.

**موتازه** :- (مو+ تا + ز )(صف ، مو ) محتاجه ، حاجتمند ، مجبور، بې وسه ( اصلاً د ,, محتاجه ،، بدل شکل دے ).

**ـــ کول** :- محتاجه کول،حاجتمند کول ، ضرورتمند کول.

**ـــ کېدل** :- حاجتمند کېدل ، محتاجه کېدل ، ضرورتمند کېدل.

**موتازي** :- (مو+ تا + زي )(پ تر،اس، مو) محتاجي ، احتياج ، حاجتمندي، ضرورتمندي.

**موتور** :- (مو + تو+ ر )(و ـــ موټر ).

**ـــ لرونکے** :- (ـــ ل + رو + ن + کے )(و ـــ موټر دار ).

**موتوريزه** :- (مو + تو + ري + زَ )(و ـــ موټر دار ).

**موته** :- (مو + تَ )(اس ،مو) يو قسم دارو دي.

د نيم پائې موته وياړه
دا دارو د ستر گو غواړه (زړه پانگه په حواله د طب نامه)

**موتيازې** :- (مو+ ت+ يا +زې )(اس ، جم ) پېشاب ، متيازې هم وئيلے شي . محاورتاً نطفه يا اولاد .

**گنده ـــ** :- (گن+ ده ـــ )(پ تر،اس ، جم ) بد فطرته سړے ، کمينه ، رذيل ، خراب اولاد .

**موټ** :- (مو + ټ )(ه ، اس ، جم ) مشهوره غله . د روغ مهمل ,, رمټ ،، په ځائې لکه برسوات کښې يوسف زي ,,روغ موټ ،، چې وائي.

**ـــ خرڅول په چا** :- محاورتاً تعلق ساتل ، چاسره .

**ـــ خرڅول** :- (په څۀ کښې ) دخل درمعقولات کول ، د بل په معامله کښې خبرې کول.

**ـــ سياکېدل** :- حال خرابېدل ، بد رنگېدل.

**موټ** :- (مو + ټ )(تابع مهمل ) د ,, روغ ،، تابع مهمل دے .د ,,روغ،، په معنٰی کښې تاکيد پېدا کوي.رمټ. لکه : روغ موټ سړے.

**دموټ ټيپک** :- د پخوانو ټوپکو يو قسم . لکه د موټ ټيپک نه تبنتن (ښبنتن) ډېرېږي دښمن هم ډېرېږي. (متل)

**موټر** :-(مو + ټر )(انگ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / رې) د بجلۍ هغه اله چې د بجلۍ په زور گرځي او ځان سره نور مشينونه گرځوي.حرکت ورکوونکے . موټر کار ، د موټر گاډے ، کار ، ټرک ، لارۍ ، بس.

**ـــ بوټ** :- (ـــ بو + ټ )(انگ ، تر ، اس ، مذ ) هغه کښتۍ چې د مشيني موټر په زور چلېږي.مشيني کښتۍ يا بېړۍ.

**ـــ بس** :- (ـــ بس )(انگ ، تر،اس،مذ ، ج ـــ ونه) بس ، لويه لارۍ.

**ـــ چلول** :-موټر کار چلول ، ډرائيوري کول. مشينونه گرځوونکے موټر ، چالو کول.

**ـــ خانه** :- (ـــ خا + ن)(انگ ، ف ، تر ، اس مو ، ج ـــ نې) هغه ځاے چېرته چې موټرې ودرولې شي.گراج ، گېراج .

**ـــ دار** :- (ـــ دا + ر )(انگ ، ف تر، صف ، مذ ،مو ـــ ه) موټر لرونکے ، هغه څيزچې موټر (د بجلۍ اله) لري ، موټوريزه.

**ـــ سازي** :- (ـــ سا + زي )(انگ ،ف ، تر،اس ،مو ) موټر کارونه جوړونه.

**ـــ سائيکل** :- (ـــ سا+ئې+ کل )(انگ،اس ، مذ، ج ـــ ونه / ان ) هغه سائيکل چې په مشين گرځي.په موټر چلېدونکے سائيکل.

**ـــ سيکل** :- (ـــ سې + کل )(و ـــ موټر سائيکل ).

**ـــ وان** :- (ـــ وا + ن)(انگ ، تر،اس، مذ، ج ـــ ان) موټر(کار) چلوونکے ، ډرائيور.

**داب رسانۍ ـــ** :- (د ،آ+ب +ر+سا+ن+ۍ ـــ )(انگ پ تر،اس ، مذ ) هغه گاډے کوم چې د اوبو ټانکۍ کښې اوبۀ وړي.د اوبو د وړلو لارۍ.

**زره پوښ ـــ** :- (ز + ر+پو+خ /ش ـــ )(انگ ، ف تر،اس،مذ ) ارمډ کار ، فوجي بند گاډے.

**زغرپالے ـــ** :- (ز + غر + پا +لے ـــ )(انگ ، پ تر ، اس ، مذ ) ارمډ کار، فوجي فولاد پوښ گاډے.

**موټر رو** :- (مو +ټر+رو)(انگ،تر،اس،مذ ) د موټرو لار يا سړک.

**موټري** :- (مو + ټ + ري )(انگ ، پ تر ، صف) موټر سره تعلق لرونکے ، په موټر چلېدونکے . لکه : موټري ماکو .

**موټرې** :- (مو+ ټ + رې ) د ,, موټر ،، جمع ده.

**موټک** :- (مو + ټک )(اس ، مذ ،ج ـــ ونه) د يو عمل نوم دے چې په کښې د سړي ,, شے ،، (غين) لاس کښې نيولے مخکښې وروستو کولے

اوخلاصولے شي۔ موټے یا جلق هم ورته وئیلے شي۔ ډېر د ګناه کار دے او
په حدیثود نبي ﷺ کښې داسې خلق ملعون یاد شوي دي۔ ولې ددې په وجه
ډېرې جنسي بیمارۍ پیدا کېږي۔ دغه څیز کوم چې اله تولد ده۔ ددغه کار
په وجه بې کاره کېږي او تردې چې دغه بیا د معاشرتي مسائلو جوړه
ګرځي۔

**—— وهل** :- د سړي اله تناسل په موټي کښې نیول، خوځول راخوځول ان چې
انزال وشي۔ یعني خلاص شي۔ مشت زني کول، جلق وهل۔

**موټکے** :- (مو + ټ + کے) (اس، مذ، ج—کي) هغه نمړۍ (نوړۍ یا نواله)
کومه چې څاروؤ وغېره د پاره جوړولے شي۔

**موټل** :-(مو + ټل) (انګ، اس، مذ، ج—ونه) هغه هوټل چېرته چې د موټرو
ګاډو ودرولو ځاے هم وي۔

**موټو** :-(مو + ټو) (انګ، اس، مذ) شعار، هغه لنډه شان نعره چې یو جماعت
یا ټولے د خپل مقصد په معنٰی کښې ځان له مقرره کړي۔ هغه خاص لنډه
نعره چې د یوې ډلې جماعت وغېره مقصد او مرام ترې څرګندېږي۔

**موټو** :- (مو + ټو) د „موټ،، بدل شکل دے۔ چې د مغیره ؤ تورو سره راځي۔

**په —— کښې نیول** :- د موټو په غلا کښې نیول، د موټو په پټې کښې د موټو د
بوټو د ربېلو په وخت نیول۔ غل ګرځول، د سزا مستحق ګڼل۔

**د —— غل** :- (د —— غل) (پ تر، اس) د معمولي څیز غل۔ محاورتاً د
معمولي سزا وړ۔ موټو غل۔ (چې د سُوک څپېړې د سزا نه پس پرېښودے
شي)۔

**موټه** :-(مو + ټه) (اس، مو، ج-ټې) موټے، دسته، د کوم څیز د نیولو ځاے، لاسته۔

که هر څو په موټه زور کړم سم پرې نۀ ځي
پــه رقیب کښــــې زمـــا غشے د ازار (شمس الدین)

**موټه** :- (مو + ټ) (هـ، صف، غټ، پېړ، څورب۔

رنګ ئې مه ګوره په سترګو
کــه ډنګره کــه مـوټه وي (خوشحال)

**موټي** :- (مو + ټي) (اس، مو) د جوارګرو نال، چې پرې له ورکولے شي۔

**موټي** :- (مو + ټي) د „موټے،، جمع ده۔ د „موټے،، بدل شکل چې د مغیره ؤ
تورو سره راځي۔

**—— واله** :- (—— وا + ل) (پ تر، اس، مذ) د پخوانو ټوپکو یو قسم وو۔

**په —— کښې** :- (پ + —— کښې) (پ تر، تف) په قبضه کښې، د لاس لاندې،
په قابو کښې، په اختیار کښې۔

**په —— کښې راتلل** :- لاس ته راتلل، قبضه کښې راتلل، په پنجه کښې راتلل،
قابو کېدل، اختیار کښې راتلل۔

**د —— دپاسه ربېل** :- په کار کښې سستي کول۔ کار نۀ کول۔ غلط او نامناسبه
کار کول۔ (وانبۀ وغېره تل، د موټي نه لاندې ربېلے شي۔ د موټي دپاسه
لور کار نۀ کوي ځکه دغه محاوره جوړه شوه)۔

**موټې** :- (مو + ټې) (اس، مو) د کلابتون (طېلے) کُنجۍ، موټے، د یوې موټے۔

**موټے** :- (مو + ټے) (اس، مذ، ج—ټي) د یو مرض نوم دے۔ چې د بار د
دروندوالي له کبله د څاروي په ښانګو کښې پیدا شي۔ دستکے، د چاړۀ
تورې وغېره د نیولو ځاے۔ مشت، د یو څیز هغه مقدار چې په یو موټي
کښې راځي۔ بڼه، وزر۔

کــه هــواګیر لکه طوطي شم بله لار مې نشته
موټي مې وښکه عشق تیار کړم د کمرونډ ته (حسین)

**—— خاوره** :-(—— خا + و + ره) (پ تر، اس، مو) په یو موټي کښې راتلونکې
خاوره۔ محاورتاً بني ادم، مشت خاک۔

**—— دګمان** :- په لینده کښې هغه خاص جوړ شوے ځاے چې لیندۍ ئې د
ګذار په وخت په موټي کښې نیسي۔

**—— کول** :- د لاس ګوتې راغونډول او د موټي شکل جوړول۔ د کوم څیز نه /
څخه یو موټے ډکول۔

**—— ګرمول، دچا** :- روپۍ یا نغدې ورکول۔ رشوت ورکول۔

**—— ګرمېدل** :- په موټي کښې روپۍ پیسې راتلل۔ رشوت ملاوېدل۔

**یو ——** :-(یو——) د یو موټي هومره، دومره مقدار (د غلې وښو وغېره) چې
په موټي کښې راتللے شي۔

**موټي** :- (مو + ټي) (اس، مذ، ج) د „موټے،، جمع ده۔ د „موټے،، بدل شکل
دے۔ چې د مغیره ؤ تورو سره راځي۔

**موټیانه** :- (مو + ټ + یا + نَ) (اس، مو، ج——نې) د قلبي موټے، موټانه۔

**مؤثر** :-(مو + اث + ث + ر) (ع، اس صف، مذ، مو ——ه) اثر کوونکے، اثر
لرونکے، تاثیر لرونکے، تاثیر کوونکے۔

**—— والے** :- (عف، تر، اس، مذ) تاثیر لرنه۔

**مؤثق** :-(م + اث + ثق) (ع، اس، مذ، مو——ه) وثوق لرونکے، اعتباري، د باور
جوګه۔

**موج** :- (مو + ج) (ع، اس، مذ، ج——ونه) د اوبو چپه، جوش، ولوله۔
مستي، سرور، د هوا چپه۔

**—— کول** :- چپې وهل۔ محاورتاً مزې کول، عېش کول۔

**—— وهل** :- چپه پورته کول، مهر پیدا کول۔

**موجونه** :- (مو + جو + نَ) د „موج،، جمع ده۔ چپې۔

**موجب** :- (مو + جب) (ع، اس، مذ، مو——) واجب کوونکے، لازم کوونکے،
فرض، ضروري، سبب، باعث، وجه، دلیل۔

**—— کېدل** :-

**—— ګرځېدل** :- باعث ګرځېدل، سبب ګرځېدل، سبب کېدل۔

**په ——** :- (پ + ——) (عپ تر، تف) په سبب، له کبله، د نتیجې په توګه سره
سم، په مطابق۔ لکه: د فلاني قانون په موجب....

**موجبات** :- (مو + ج + با + ت) (ع، اس مو، ج) د „موجب،، جمع ده۔

**موجد** :- (مو + جد) (ع، اس، صف، مذ، ج——ان /ین) ایجاد کوونکے، نوې
خبره راپیدا کوونکے، اختراع کوونکے، د خپل طبیعت او دماغ په زور
یو نوے څیز راپیدا کوونکے۔

**موجده** :- (مو + ج + د) (ع، پ، اس، مو، ج——ې / انې) د „موجد،،
تانیث دے۔

**مؤجر** :-(مُ + اَجْ + جَ + ر) (ع، اس، مذ، مو——ه) په اجاره ورکړے شوے، په
کرایه ورکړے شوے۔

**موجره** :- (موج + ره) صفت، وګورئ مُجرا۔ حساب شوے، کټ شوے۔

**موجز** :-(مو + جز) (ع، صف، مذ، مو——ه) مختصر، لنډ، خلاصه۔ لکه:
موجز تقریر، د طب د یو پخواني مشهور کتاب نوم۔

**موجل** :- م + اَجْ + جَل) (ع، اس، مف، مذ، مو——ه) مهلت ورکړے شوے،
بل وخت ته پاتې کړے شوے، ملتوي شوے۔

**—— مهر** :- (—— م + مه + ر) (عپ تر، اس، مذ، ج——ونه) هغه حق مهر (
ولور) کوم چې مخې سره نۀ ادا کېږي۔ بلکې وروستو بل وخت ته
پرېښودے شي۔ د „معجل،، ضد دے۔ په نېټه کړے شوے، او معجل
نغد ته وائي۔

**موجود** :-(مو + جو + د) (ع، صف، مذ، مو——ه) وجود (ور) کړے شۀ، پیدا
کړے شوے، حاضر، ظاهر۔

**—— تیا** :- (—— ت + یا) (عپ، تر، اس، مو) موجودګي، موجود والے،
حاضري

**ــــ کول** :- حاضر کول،مخامخ راوستل.وجودورکول، پیداکول.

**ــــ کېدل** :- حاضرېدل،مخامخ کېدل ،وجودمونډل، پیداکېدل.

**ــــ في الخارج** :- (ــــ فل + خا + رج)(ع ، تر،اس) هغه ځیز چې باهر وجود لري.وجود لرونکې ، (یعني هغه چې محض خیالي نه وي).

**موجودات** :- (مو + جو + دا+ ت)(ع،اس،مو،ج) د موجود (اسم) جمع ده . موجود ځیزونه ، مخلوقات.

ماچې نظر وکړ په ذرات په موجودات

ګول په جهان راغلم ترې به ګولم دروموم هیهات (خوشحال)

**موجودګي** :- (مو + جو + د + ګي)(عف تر،اس،مو) حاضري ، شتهٔوالې ، وجود لرنه

**موجودول** :- (مو + جو + د+ ول)(و ــــ موجود کول).

**موجوده** :- (مو + جو + ده)(ع ،اس ، صف) حاضر ، وجود لرونکې ، لکه :موجوده خلق.

**موجودي** :- (مو + جو + دي)(عف،تر،اس) هغه تغدیت کوم چې په لاس کښې وي.هغه جنس چې موجود وي.ستاک ، شتهٔ مني.

**موجودیت** :-(مو + جو + دي + یت)(ع ،اس ،مذ) حاضري ، وجود لرنه ، هستي لرنه.

**موجودېدل** :- (مو+ جو+ دې + دل)(و ــــ موجود کېدل).

**موجه** :- (م +وَ+جْ + جَ)(ع ، صف) خوښ کړے ، د خوښې ، پسندیده .لکه : موجه اسباب ، کوم طرف ته چې مخ کړے شي. د قبلولو وړ ، دلیل واله ، معقول ، لکه: موجه عذر.

**غېر** ـــ:-(غې + ر ـــ)(عف،تر،صف) هغه چې دقبلولو وړ نه وي.ناخوښي ناقبوله.

**موجي** :- (مو+جي)(عپ ،تر صف) موج کوونکې، خوش طبع ، ازاد طبیعت واله

**موجلې** :- (مو+ چ + لې)(اس ، مو) خالي کارتوس، تش کارتوس ، توکه کوکه ، د مرزانو یو قسم شپېلے یا نېچه چې اکثره د مرغۍ د پتون د هډوکي نه جوړولے شي. د غوږ یو کالے ، چې بیا مچلۍ هم ورته وئیلے شي.مچلۍ اصلاً د اردو یا هندی ،، د مچهلي ،، څخه دے .د غوږ دغه کالے وي هم ځهٔ په دغه ډول نو وړوکے وي.

**موچن** :- (مو + چن)(اسم،مو،ج) پڼه، څپلۍ، پائزار.

**ــــ ګنډونکے** :- (ــــ ګن + ډو + ن + کے)(پ تر، اس،فا،مذ،ج ــــ کي) څپلۍ / پېزار ګنډلو واله یا مرمت کولو واله ، موچي یاچمیار .

**ــــ والا** :- (ــــ وا + ل)(پ تر ،اس ، مذ) موچنیو والا ، موچنې خرڅوونکې ، د پېزارونو خرڅونکے ، پڼې څپلۍ وغېره خرڅوونکے.

**موچنه** :-(مو + چنه)(پ تر،اس ، مو، ج ــــ ړې) د موچي تانیث دے . پڼه، پېزار،جوتۍ.

**زرینه** ـــ :- (ز + ري + نَه ـــ)(پ تر،اس ، مو ، ج ــــ ې ــــ ې) طېله داره پڼه ، هغه پڼه چې د طبلې (تېلې) کار پرې شوے وي.

**موچنې** :- (مو+ چ + نې)(اس ، مذ ،ج ــــ ان) موچي ، پڼې ګنډلوواله.

**موچو** :- (مو + چو) د ،، مچۍ ،، (جمع) بدل شکل دے چې د مغیرهٔ تورو سره راځي .یا حالت مفعولي کښې یا اضافي کښې. لکه : په موچو ئې دارو اوښېندل.او یا: د موچو ګبین.

**د ــ ګبین** :- (د ــ ګ+ بي + ن)(و ــــ د موچو ګګ یا ځاله یا کور).

**د ــــ ګګ** :- (د ــــ ګـګ)(پ تر،اس،مذ ، ج ــــ ونه) د موچو ګبین ، محاورتاً خطرناک یا غصه ناک سړے یا ښځه، کار وغېره چې ورنزدې یا چېړل ئې د تکلیف یا نقصان باعث کېدے شي.

**د ــ موچو ګګ له ګوتې ور وړل** :- د موچو ګبین ته ګوتې یا ډکے وروړل چې نتیجه ئې د هغو راپارېدل دي . محاورتاً ځان ته پخپله خطره یا تکلیف را پیدا کول.داسې سړے چېړل چې جواباً هغه تکلیف ورسوي وغېره.

**موچو نوغزه** :- (مو+ چو+ نو+غ + زه)(اس،مو،ج ــــ زې)مچوغښه، مچلوغزه . د ماشومانو یوه اسلحه چې ماشوم یا هلک یا جینۍ د قد مطابق دوه نرۍ پرې یا مزي په مېنځ کښې د کانې / ګټې اېښودلو دپاره پټاره (چې عموماً د څرمنې یا تارونو نه جوړولے شي) وي د یو مزي سر کښې د ایساکۍ ګوتې دپاره د هم دغه مزي نه جوړه شوې ګوتمه وي او د بل مزي سر ئې هوار وي او اکثر دغه د رېښمو د تارونو نه جوړولے شي یا دغه سر کښې د رېښمو یو وړوکے پوندړے غوټه کولے شي .دغه سر ئې د اسلحې د استعمال په وخت مټ ښهٔ تاوؤلو نه پس خوشې کولے شي او پټاره کښې پروت کاڼې د زور مطابق لرې غورځولے شي .نخښنانه باز دغه اسلحه باندې په درنو کاڼو ښهٔ نخښنه ویشته شي نن صبا [1] په اخبارونو کښې د اسرائیلو خلاف د فلسطیني ماشومانو په وړو ، وړو لاسونو کښې لیندو او مچوغښو تصویرونه راځي.

**موچي** :- (مو + چي)(اس،مذ ، ج ــ ان) چمیار ، پڼې ، څپلۍ وغېره ګنډونکے یا جوړوونکے.

**ــــ ګري** :-(ــ ګ + ري)(پ تر،اس مو) د موچي پیشه ، چمیار توب ، موچي توب.

**ــــ توب** :- (ــــ تو + ب)(و ــــ موچي ګري).

**موچۍ** :- (مو + چۍ)(اس ، مو).زنبور،مشهور لشې دار الوتونکې حشره.

دا نااهله همدمان دي نهٔ پوهېږم

که موچۍ د رحمان پنډې په ګوګل دي (رحمان بابا)

**موچے** :- (مو + چے) هغه اوښ چې د پاسېدلو په وخت ئې پښه برغده شي.

**موچیزۍ** :- (مو + چي+ زۍ)(اس ، مع) د ممېزیوځانګه ده .مندوخېل پنې دي.

**موځه**:- (مو + سه)(و ــــ موځۍ).

په حساب د سیم و زرو هوسېږي

که وورکے د زړهٔ سود کاندې په موځه (میرزا خان)

**موځۍ** :- (مو + سۍ)(اس،مو) وړوکے شان غونډ کړے شوے او سولولے ټیکرے یاکاڼې چې هلکان ورسره لوبې کوي.

**موحد**:- (مو+احْ+حد)(اس،مف،مذ ، مو ــــ ه) یواځې، یوستوے ، یکړ (ګرامر) هغه تورے (حرف) چې فقط یوه نقطه (ټکے) لري .لکه : موحده ب یا بائے موحده.

**موحـد** :- (م + و + ح + حـد)(ع،اس،مـذ ،ج ــــ ان / ین) د خدا ے پاک د وحدانیت (یو والي) عقیده لرونکے،د یوخداے منونکے، مسلم ، مسلمان .

**موحش** :- (م + و + ح + حِش)(ع ، اس ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) وحشت پیدا کوونکے ، دهشت غم پیدا کوونکے ، فکر مند کوونکے.

**مؤخر** :- (م + اخ + خر)(ع ، صف ، مذ ،مو ــ ه) وروستو کړے شوے،اخر ته کړے شوے،اخري ، وروستنې، ورستې.

**ــــ کول** :- وروستو کول ، شاته کول ، اخر ته کول.

**مقدم** ـــ :- (م + قد + دم ـــ)(ع ، تر ، اس) وړاندې ورستو .مخکښېنې ځیز ورستو (کونه) او ورستنې ځیز وړاندې (کونه) عموماً الفاظ د خپل اصل ځائې نه په دې ډول بدلونه.تقدیم تاخیر.

**مقدم ــــ کول** :- تقدیم تاخیر کول ، د الفاظو وغېره ترتیب اړولے کول ،

[1] د یوویشتمې صدۍ د ابتدایي کلونه

وړاندېنۍ څيز ورستوکول او ورستنے وړاندې کول.

**مؤخره** :- (م + اخ + خر) د ,, مؤخر ،، تانيث دے.

**ــــ الجيش** :- (ــــ (تُل) جے + ش) (ع ، تر ،اس ،مذ) د لښکر هغه برخه ، کومه چې د عام لښکر نه وروستو ساتلے شي .(د مقدمة الجيش په مقابله کښې).

**موخه** :- (مو + خه) (اس ،مو ،ج ــ خې) هدف ،ګل زيرے ، نښانه.

درسته موخه تير انداز سړے خطا کا

د ټـکـي پــه ســر د اوړکې لګي تير (خوشحال)

د غشو د ويشتلو يوه زدکړه او مشق کوم چې تر اوسه د يوې لوېې په توګه د يوسفزئيو په علاقه کښې کولے شي.

**ــــ ويشتل** :- نخښه ويشتل ، نښانه بازي کول ، تير اندازي سره ښيانه ويشتل

**موخې** :- (مو + خې) (اس ، مو) د يو بوټي نوم دے چې د کونځلو په شان دانې کوي.د لوښو په بدل کښې ورونه.

**ــــ کول** :- د لوښو يو بل سره په بدلون کښې په شرعي ډول نکاح کول.

**مود** :- (مو + د).

**موډ** :- (مو + ډ) (انګ ،اس ،مذ) رواج ، دود ، طريقه ، دستور.

**ــــ کېدل** :- رواج موندل ، مروج کېدل.

**دــــ سره برابر لباس اغوستل** :- د رواج سره سمې جامې اغوستل .د فېشن سره سم لباس اغوستل.

**نوے ــــ را ايستل** :- نوے رواج را ايستل ، نوې طريقه ايجادول.

**مودا خېل** :- (مو +دا + خې + ل) (اس ،مع) د خټک خېلو څانګه ده .(خټک خېل ، خوازوزئ ،اکوزي) يوسفزي دي.

**مودب** :- (مُ + اد + د + ب) (ع ،صف ،مذ ،مو ــــ ه) ادب ورښودلے شوے ، ادب کولو واله ، مهذب ، ښۀ اخلاقو واله.

**مــؤدب** :- (مُ + اد + دب) (ع ،اس ،مــذ ،مو ــــ ه) ادب ورکــوونکے ،ادب ښودونکے ، مهذب کوونکے ، تربيت ورکوونکے استاذ.

**مودت** :- (م + و +دت) (ع ،اس ، مذ ، ج ــــ ونه) خپلو کښې سره دوستي ، مينه ، محبت ، اخلاص.

**مودزئ** :- (مو+د+زئ) (اس ،مع) د مير زئيو څانګه ده .(ميرزي ، بابړ) شيراني دي

**مودو** :- (مو + دو) د ,, مودي ،، (جمع) بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي .لکه: د ډېرو مودو خبره ده چې ...

**دــــ مودو راسې** :- (د ــــ را + سې).

**دــــ مودو نه / څخه** :- (د ــــ نه + (ت) س + خ) ډېرو زياتو وختونو راسې ، د ډېرې زمانې راسې ، د ډېرې زمانې نه / څخه.

**موده** :- (مو + ده) (اس ، مو ، ج ــــ دې) وخت ، زمانه ، دوران.

**ــــ اوړېدل** :- ډېر وخت تېرېدل.

**ــــ تېرول** :- خت تېرول ، زمانه تېرول.

**ــــ کېدل** :- مانه کېدل ،وخت تېرېدل .لکه: ډېره موده وشوه چې ...

**پهــــ کښې** :- (پ ــــ کښې) په (دومره) وخت کښې.

**ډېرهــــ کېږي** :- (جمله) ډېر وخت پرې تېر شوے دے ،ډېر پخوا.

**موده** ☹ مو + دَ) (و ــــ مود).

**لهــــ څخه لوېدل** :- (و ــــ له موده څخه وتل).

**لهــــ څخه وتل** :- له رواجه وتل ، فېشن نۀ پاتې کېدل.

**مودي** ☹ مُ + د + دي) (ع ،اس ،مذ) ادا کوونکے ،رسوونکے ، ورکوونکے.

**مودّي** :- (مُ + د + دا) (ع ،اس ،مف) ادا کړے شوے ، رسولے شوے.

**موډي** :- (مو + ډې) د ,, موده ،، جمع ده .د ,, موده ،، بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ــــ وشوې** :- (ــــ وش + وې) (جمله) وختونه تېر شول ، ډېره زمانه تېره شوه.

**موډ** :- (مو + ډ) (انګ ،اس ،مذ) حالت ،وضع ،طبيعت ،طبع.

**ــــ خرابول** :- طبيعت خرابول ، مزاج خرابول ، طبيعت خفه کول ، په طبع کښې ناسازګاري پيدا کول.

**ــــ خرابېدل** :- طبيعت خرابېدل ، مزاج خرابېدل ، طبيعت کښې خفګان يا ناسازګاري پيدا کېدل.

**ــــ کښې دے** :- (جمله) طبيعت ئې ښۀ دے .خوشحال دے ، چُرت کښې دے.

**پهــــ کښې** :- په ښۀ طبيعت کښې ،خوشحاله.

**موډرن** :- (مو + ډر + ن) (انګ ، صف) نوے ، جديد ،د نوې زمانې ددود رواج مطابق.

**موډرنزم** :- (مو+ډر + از + م) (انګ ،اس ، مذ) جدت پسندي ، د نوي دور دود دستور وغېره د خوښونې نظريه.

**موډل** :- (مو + ډ + ل) (انګ ، اس ،مذ ، ج ــــ ونه) ماډل ، نمونه ، سر مشق.

**موډي** :- (مو + ډي) (انګ پ تر ،صف) په طبيعت کښې تلون لرونکے ، ډېر زر خفه (ياخوشحاله) کېدونکے ،

**موډخېل** :- (مو+ډ+خې + ل) (اس ، مع) د شادي خېلو څانګه ده .(شادي خېل ، بوراخېل ، مهمت خېل ،اتمانزئ ، درويش خېل) وزير دي.

**موډرخېل** :- (مو+ ډ + ر + خې + ل) (اس ،مع) د ادا خېلو څانګه ده .(اداخېل ، اتمان خېل ، ايسپ خېل ، زلي خېل ، بومئ ، نصرئ ، کالوخېل ، احمد زئ ، درويش خېل) وزير دي.

**مــوذن** :- (م +اَذْ +ذِ + ن) (ع ، اس ، مـذ ،ج ــ ان) اذان کـوونکے ، بانګ ويـونکے ، بانګي.

**موذي** :- (مو+ ذي) (ع ،اس ،مذ ، ج ــ ان) ايذار رسوونکے ، تکليف رسوونکے ، تکليف ورکوونکے . ناخوښه خاوند . لکه د خاوند ورور ئې د رواج له رويه د هغۀ د مرګ نه پس د هغه ښځه ورپه نکاح کړے شي.

د نيشت نه موذي هم ښۀ دے کټ خو پرې ډک وي. (متل)

رقيب.

**ــــ توب** :- (ــــ تو + ب) (پ تر ،اس ،مذ) د موذي سړي په شان کارونه . موذي والے ،سستي ، پړسمني ، بېکاري.

**ــــ ګے** :- (ــــ ګے) (پ تر ،اس ، مذ ،ج ــ ګي) د ,, موذي ،، تصغير دے . ناخوښه خاوند.

د مــوذي ګي نــه کــونډه ښۀ يم

توره څړښه به ګرځوم ځان به ساتمه (ټپه)

**دــــ مال** :- (د ــــ ما + ل) (عپ ،تر ،اس ،مذ ،ج ــ ونه) د ,, موذي ،، سړي مال . د ضرر رسوونکي سړي مال ، دشوم سړي مال . (د فارسي ددې متل نه اخستے شوے دے ,, مال موذی خوردن غازی ،،).

**مــور** :- (مـو + ر) (اس ،مـو ،ج ــ مينـدې) مـادر (ځينې خلق د مـور جمع موريانې هم کوي خو دا جمع عامه نۀ ده . کنايتاً زمکې ته هم وئيلے شي.

**ــــ اخيستل ، اغيشتل ، دچانه / څخه** :- ښکنځل دي) د چا مور غئيل .ډېر زيات نقصان يا تکليف رسول ، ډېر زيات وهل ، ډېر ډبول .ډېر زيات کار اخيستل.

**ــــ او پلار** :- (ــــ او ، پ + لا+ ر) (پ تر ،اس ،ج) والدين ، مادر و پدر.

**ــــ او پلار** :- ,,بودل،، د مور او پلار په ځاے ,,بودل،، د مور او پلار په شان، د عزت او احترام وړ ,,بودل ،، دکوم لوے مهربانه سړي ته د هغه د عزت او

احترام دځرګندونې په څېر وايهٔ شي۔

**ــــ بي بي** :- (ـــ بي + بي) (پ تر، اس) مورته د عزت اومينې په طور وئيلے شي۔

**ــــ خور اخيستل / اغيشتل** :- (وــــ مور اخيستل)۔

**ــــ او خور ښکنځل ، دچا** :- چا تـه د مـور يـا خـور ښکنځل کول۔ ښکنځلې کول۔

**ــــ او خور نهٔ لري څهٔ ؟** :- (جمله) پـه داسې موقـع وئيلے شي چې څـوک لـوفر سړے کومې عزت دارې ښځې سره څهٔ چېړ وکړي نو هغه تـه د خپلې مـور او خور ننګ ور اړولے شي چې که داسې خرابـه خبره يـا حرکت سـتا مـور ، خور سره وکړي نو ايا تهٔ به دا خوښه کړې۔

**ــــ اوخور هر څوک لري** :- (جملـه) يعنې څهٔ چې دې په ځان نهٔ وي خوښهٔ پـه نـورو ئې مـه خوښـوه ۔هر څـوک د خپلې مـور او خـور شـرم پـړده او عـزت خوښوي۔ ځکه د نورود ميندو خويندو هم احترام کوي۔

**ــــ اوخور يادول ، دچا** :- (وــــ مور او خور ښکنځل)۔

**ــــ روے** :- (ــــ ر + وے) (پ تر ، صف) د مـور رودونکے ، ډېر ماشـوم ،د پيـو ماشوم۔

**ــــ زادے** :- ــــ زا + دے) (پ تر ، صف) مادر زاد ، د پيداوښت نـه۔ لکه : مور زادي ړوند۔

**ــــ زادي** :- (ــــ زا + دي) (پ تر ،صـف) مـادر زاد ، د مـور د ګېـډې نـه راؤړے مور زوولے يا زېږولے۔

مورزادي کم عقل ، هېڅ نهٔ هوښيارېږي

کـــه پـــه يـــا د لولي څـــلور واړه کتابه (خوشحال)

**ــــ غود** :- (ــــ غو + د)۔

**ــــ غودے** :- (ــــ غو +دے) (پ تر، صف) ښکنځل دي ، هغه چې خپلې مور سره ئې بدکاري کړې وي۔ محاورتاً : ډېر فسادي ، ډېر شېطان ، يا ډېر خراب او حرامي کس ۔مور غود / خور غود هغه کس ته وئيلے شي چې پـه کښې هر شـان بـدعملي ،دوکـه ، شېطانے او خرابے موجودوي او بـل ښکنځل پرې کم راځي۔

**ــــ غود خورغود** :- (ــــ خو+ر + غو +د) (پ تر) سخت ښکنځل دي۔ محاورتاً : ډېر زيات فسادي ، ډېر لوے شېطان اووران کارے ۔اکثر دغـه قسم غبرګ ښکنځل ګنو کسانو تـه کېږي او غرض دا وي دغـه ډلـه يـا کسانو مـور غـود هـم شـته او خـور غـود هـم يعنې مختلف قسم حراميـان او بـد عملـه و وران کاري دي۔

**ــــ غـودي** :- (ــــ غـو + دي) (پ تر ،اس ،مـو) شـرارت ، فسـاد ، شـېطاني ، ورانے ، بدعملي۔

**ــــ غودي کول** :- شرارت کول ، ورانے کول ، شېطانے کول ، بد عملي کول۔

**ــــ مړے** :- (ــــ م+ ړے) (پ تر ، اس ، ج ــــ ړي) هغه څوک چې مـور ئې مړه شوې وي ، د ښېرې په طور هم هغه کس ته وئيلے شي چې مور ئې ژوندۍ وي۔

**ــــ ولي** :- (ــــ و + لي) (وــــ مور والے)۔

**ــــ والے** :- (ــــ وا + لے) (پ تر ،اس ،مـذ) د مـور غونـدې تعلـق لـرل ، مورکېدنه مور شانې کېدل۔

**دــــ راؤړے** :- (پ تـر ،اس مـذ ،ج ، ړي) ورور ،بـرادر ۔ لکـه : څـهٔ مـور راؤړے څهٔ ترور راؤړے (متل)۔

**دــــ زوئے** :- عموماً د سواليه حرف سره راځي۔ لکه کوم د مـور زوے يـا څـوک د مـور زوے ۔ ځينې وخت د چاد نرتـوب او زړهٔ ورتيـا د چيلـنج کولـو پـه موقع ورته وئيلے شي۔

کـــه زما د دوي سندوبله يو شي

څوک د مور زوبه لري د مخ مجال (خوشحال)

**موراني** :- (مو +را + ني) (اس ،مع) د خدرانيو څانګه ده۔ **جعفر دي**۔ شيماني د دوېي يوه څانګه۔

**مـورب خېـل** :- (مـو + رب + خې + ل) (اس ،مـع) د عثمـان خېلو څانګـه ده ۔ (عثمان خېـل ، تختـي خېـل ،بقاخېـل ، ولـي خېل ،اتمانزئ ،درويش خېـل) وزير دي۔

**مــورث** :- (مــو + رث) (ع ،اس ،مــذ ، مــو ــــ ه) وارث کــوونکے ، وارث ګرځونکے هغه دچا نه چې څهٔ په ميراث کښې چاته ورسي۔ باعث ، سبب

**ــــ اعلـٰى** :- (ــــ (ث) اع + لـٰى) (عـف ،تر ،اس) د يـو خانـدان هغـه مشـر د چاوراثت چې د هغه د خاندان پـه وګړوکښې تقسيم شـوے وي ۔ د يوخـان هغه پخوانے نيکهٔ چې مال جائيداد ئې نمسو کړوسوته په ميـراث کښـې ور رسېدلے وي۔

**مورچال** :- (مو + ر + چا+ ل) (ع ،اس ،مذ ،ج ،ــــ ونه) هغـه کنده چې د قـلانـه چاپېره کنستلے شي ۔ مورچه چې په دښمن د غشيو ياګولو ورولـو پـه وخت يا ورته موقع نيولو په وخت د ځاے په توګه استعمالولے شي۔

**مورچانه** :- (مو + ر +چا+ نِ (ف ،اس، مو) هغه زنګ چې په اوسپنه ولګي۔

**مورچيے** :- (مو + ر + چ + يے) (پ تر ،اس ،مذ ، ج ــــ يي) بې غېرتـه ، بـې ننګه هغه چې پيدا کېدلو سره ئې مور مړه شي۔

**مورچل** :- (مو+ ر + چل) (اس، مذ ،ج ــــ ونه) اوګورئ ,,مورچال ،، .

**مورچه** :- (مو+ ر + چه) (وــــ مورچل)۔

**ــــ نيول** :- مخالف يادښمن ته مورچه کښې کښېناستل ،د دښمن يا بـل چا نه مورچه قبضه کول ،د دښمن په مورچه (ېېر يا په اول ځل) اخستل۔

**ــــ وهل** :- د دښمن مورچه فتح کول۔ محاورتاً : څهٔ لويه کارنامـه سرتـه رسـول مريتې وهل ، ډېلے وهل۔

**مورچه** :- (مو + ر + چه) (ف، اس ، مو ، ج ــــ چې) مېږے۔

**ــــ خور** :- (ــــ خو + ر)۔

**ــــ خوار** :- (ــــ خ + وا + ر) يا (ــــ خا + ر) (ف تر ،اس ، مذ) يـو ځنـاور دے چې مېږي خوري۔

**ــــ خوراک** :- (ــــ خو + رک) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) د يـوې مرغـۍ نـوم دے چې اوږده مښوکه لري۔ او خوراک ئې مېږي دي۔ مېږي خورکه۔

**مورچه خېل** :- (مو + ر + چه + خې + ل) (اس، مع) د درماکور څانګـه ده ۔ درمـا کور (شاه منصور خېل ،دادو خېل ، ترک زي) مهمند دي۔

**مـورخ** :- (مُ +ا + رِخ) (ع ،اس ،مـذ ، جــــ ان / ين) د تـاريخ ليکـونکے ، تـاريخ نګار۔

**مورخــه** :- (مُ + ور+ ر + خـه) (عـف، تـر ،اس) د ليـک نېټـه ، پـه خطونـو يـا درخواستونو ددغې د ليک نېټه ۔اکثر درخواستونو باندې مورخه ليکلے شي ۔د دستخط نـه بـره او د درخواست د متن نـه پس تـه لاندې دغـه ټکـے ليکلے شـي او ورتـه مخامخ ددغـه ورځې نېټـه ليکلے شـي لکـه دا نـن ۔ مورخه ۲۰۰۲ء / ۹ / ۹ د ليک نېټه۔

**مورخه** :- (م + ا + ر +خه) (اس ، مو ، ج ــــ خې / انې) د ,, مورخ ،، تانيث دے۔

**مــورد** :- (مـو + ر + د) (ع ،اس ،مـذ ،ج ــــ ونـه / مـوارد) هغـه ځاے چېرتـه چې څوک تېرېږي۔ د تېرېدلو ځاے۔ د ورننوتلو ځاے ، د کوزېدلو ځاے ، تالاؤ ، ډنډ ،چېرته چې بنيادم يا ځناور اوبهٔ څښي ،چينه ، واقعه ، موقع۔

**ــــ ګرځـول** :- د کوم څيـز دنـه کـوونکے / ګرځـول ۔ځـاے ګرځول يـا ګڼـل ، محاورتاً ذمه وار ګرځول ياګڼل۔

**ــــ ګرځېدل** :- د څهٔ جرم يا غلطۍ ځاے يا ذمه وار ګرځېدل۔

**ــــ لرل** :- د ښکته کېدلو ځاے لرل ، د ورکوزېدو ځاے لرل۔

**د استعمال ــــ ګرځول** :- د استعمال لايق ګرځول يا ګڼل۔

**دالزام ـــــ ګرځول** :- ځا ے يا ذمه وار ګرځول.

**دعتاب ـــــ ګرځېدل** :- د سزا ځا ے يا جوګه يا لايق ګڼل کېدل.

**موروزېږ** :- (مو + ر + زي +ږ)(پ تر ،اس ،مذ ، مو ـــ ه) له موره زېږېدلے، هغه ورور چې مور ئې يوه وي.خو پلاران ئې جدا جدا وي.اخيافي ورور.

**مورغږوۀ** :- (مو + ر + غږ + ۇ)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د يوې ونې نوم دے چې د چنار په شان وي.او نرۍ دانې کوي.

**مورفولوجي** :- (مو + ر + فو + لو + جي)(انګ،اس،مو) د شکل (فورم) علم ، خصوصاً د ځېژونو بـاهر شـکل ، (فـورم) او د ننے سـاخت او د ژونـدي عضـوياتو د ودې او د ترقۍ پـه حقلـه علـم .د غړونـو د تـړواو د زمکـې د شکلونو علم.د ژبو د الفاظو وغېره علم.

**نباتي ـــ** :-(ن + با + تي ـــ)د مورفالوجي هغه علم چې ونو بوټو وښو سره تعلق لري.

**حيواني ـــــ** :- (حي + وا + ني ـــــ) د مورفولوجي هغه علم چې د حېواناتو سره تعلق لري.

**دژبو ـــــ** :- (د + ژ +بو ـــــ) د مارفولوجي هغه قسم چې د ژبـو د الفـاظو جوړښت سره تعلق لري.

**مورفولوژي** :- (مو + ر + فو + لو + ژي)(و ـــ مورفولوجي).

**مورفيا** :- (مـو + ر + ف +يا)(انګ ،اس ، مـو) مـورفين ، يـوه نشـه کـوونکې دوائي چې د افيمو نه جوړېږي.

**مورفين** :- (مو + ر + في + ن)(و ـــ مورفيا).

**مورک** :- (مو +رک)(هـ ،اس،مذ ، ج ـــ ان) کم عقل ، ساده ، بېوقوف.

مورک يو دے له کور که
دا حېـــوان ګـوره مورکه (ارزاني)

(اصلاً هندي ده.مورکھ).

**مورکا** :- (مو+ ر +کا)(و ـــ مورک).

راز د مينې و همـــدرد وتـــه وايۀ شي
نۀ شي دا د عشق وئيل هر يو موکا ته (يونس)

**مورکه** :- (مـو + ر + کَ)(اس ، مـو ، ج ـــ کې) د ,,مـور،، تصـغير دے .مور تـه د مينې نه وئيلے شي .يا خاص کېفيت کښې د جذباتو د غلبې په حال کښې خپلې مور ته وئيلے شي .پردۍ مشرې ښځې ته د ډېر ادب په حالت کښې مخاطبه.

**مـورکۍ** :- (مـو + ر + کـۍ)(اس ، مـو) د ,,مـور،، تصـغير دے .مـور تـه د خطاب په وخت د مينې نه وئيلے شي.(و ـــ مورکه هم).

**مـورګنۍ** :- (مـو + ر + ګ + نـۍ)(اس ، مـو) د مـور د طرف خپـل خپلـوان چې ماماخېله هم ورته وئيلے شي او کله کله ورته د مور خاندان هم وئيلے شي.

**مورګنے** :- (مو + ر + ګ + نے)(اس ، مذ) د مور له خوا د سړي خپلوان.

**مورګنۍ کور** :- (مو + ر + ګ + نۍ + کو+ر)(اس ،مع) د هتۍ کور څانګه ده .(هتۍ کور ،محمد خان کور يا برهان خېل ، پنډيالي) مهمند دي .(په بله شجره کښې د ورګنـۍ پـه ځـا ے,,مورغۍ کور،، نوم ليکلے دے .چې ښکنځل هم دي.) ددې نه علاوه د هتۍ خېل په ځا ے هاتي يا هتي خېل ليکلے دے .بله دا چې محمد خان کور ئې برهان خېلو پـه نسـل کښـې ښودلے شوے دي.داسې ښکاري چې ددې بلې شجرې ليک درست دے .(بخاري).

**مورګه** :- (مو + ر + ګَ)(اس، مو،ج ـــ ګې) د لوښې د خولې څنډۀ .ژۍ.

همېشه شونډې د جام په مورګه ايښې
پـــه خـــاطر له جـــام جمـــه اسوده دي (خوشحال)

د بل کوم ژور ځا ے غاړه پوله ، د سرحد خط . د غر پوره حصه چې دواړو طرفونو ته ئې زوږ وي.

**مورل** :- (مو + رل)(مص)اورے ، دګډې بچے ،د موره جدا کول.

**مـورل** :- (مـو + رل)(مص) د ,, مېرل ،، بـدل شـکل دے . د هلکـانو پـه لوبـو کښې د مشرانو (ميرانو) ځان ځان له ملګري يعني مليان اېول يا چوڼل.

**مورمان** :- (مو+ ر+ما + ن) د ,,محرمان ،،بدل شکل دے.(دمحرم جمع ده).

**مورنۍ** :- (مو + ر + نۍ) د,, مورنے ،،تانيث دے.

**ـــــ ژبه** :- (ـــــ ژ + بَ)(پ تر ، اس ، مو) خپله ژبه چې اول ئې د ماشوم والي نه زده کړې وي.چې په محاوره ئې هم پوهېږي. دخپل وطن ژبه.

**مورنے** :-(مو +رَ + نے)(پ تر، صف،ج ـــ نې) مور سره تعلق لرونکے،مور تـه منسوب.

**ـــ ورور** :- (ـــــ(و) + رو + ر)(پ تر،اس ، مذ) هغه ورور چې د خپلـه موره وي.

**ـــ هېواد** :- (ـــــ هې +وا + د)(پ تر، اس،مذ) هغه ملک چې د چا د مور د هغې ملک سره تعلق لري.اصلي وطن.

**مــوروث** :- (مــو +رو+ ث)(ع ،اس ،مـف ، مـذ ، ج ـــ ان) هغـه چـې وارث وګرځـولے شـي . وارث ګرځـولے شـوے ، ميـراث خـور ، هغـه څـۀ چې پـه وراثت کښې ملاؤ شوي وي.

**موروثي** :- (مو+رو + ثي)(عف ، ت ر ،صف) په وراثت کښې مـلاؤ شـوے ، د پلار نيکۀ نه ورپاتې شوے. ابائي ، پدري ، جدي ، پُشت په پُشت.

**موروزے** :- (مـو+ رو+ زے)(اس،مذ) دپودينې په شان يو غرئيز خوشبويه بوټے

**مورول** :- (مو + ر + ؤل)(مص)(و ـــ مهر لګول).

**موره** :- (مو+ ره) د,, مور ،،بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**د ـــ** :- (د ـــ)(پ تر) دمور د ګېډې نه ، سکه (ورور يا خور) . لکه : چې دې نۀ وي له موره ورته مه وايه چې وروره. (متل).

**مورۀ** :- (مـو + ر)(حمص) د ,,مـورل ،، مصـدر حاصـل مصـدر دے .چوڼنه ، انتخاب کونه ، په لوبه کښې ملګري غوره کونه.

**موره** :- (مو + ر)(اس ،مو) تومنه.

**موري** :- (مـو+ ري)(صف) سپين غنم ، دغنمو يو قسم ، ښائسته غنم .لکه چې وئيلے شي غنم نۀ دي موران دي.

**مـوري** :- (مـو+ ري)(اس ، مـذ) هغـه اوبۀ چـې د نوروااوبـانو نـه وړانـدې وړاندې ځي.

**مورۍ** :-(مو + رۍ)(اس ،مو) يو قسم غرئيز بوټے دے.د څارو خوراک دے.

**مورۍ** :-(مو + ر + ۍ)(اس ، مو) سورے، د تنور يا د کندو سورے . ديوال يا داسې بـل څـۀ کښـې وړه دروازګـۍ چـې پـه کښـې بنيـادم پـه ناسـتې يـا ملاستې تللے شي.

**موري** :- (مو + ري)(فعل) د ,,مـورل ،، مصـدر نـه د حال (غائب) فعـل ، هغـه ځان له ملګري خوښوي يا ګوري يا غوره کوي وغېره.

**مورے** :- (مو + رے)(اس،مذ،ج ـــ ري) د چت چجه.

**مورې** :-(مو + رې)(اس ، حرف ندا) مور تـه د مخـاطبې پـه وخت وئيلې شي . اے مورې يا مورې.

**موريزۍ** :- (مو + ري +زۍ)(اس،مع) د ايسوټو قبيلـه ده .د موريزئيـو څانګې دادي. پائندزۍ ، کټي زۍ ، ستن زۍ ، خانيزۍ او خدرزۍ.

**مـوريزي** :- (ددغـه)(اس،مع) د عيسٰی خېلو څانګـه ده . (عيسٰی خېـل ، سناټيه ) کاکړ دي.

**موريزۍ** :- (ددغه)(اس ، مع) د مليزئيـو څانګـه ده .(مليزۍ ، احمدزۍ ، بيبل خېل موسٰی خېل دي).

**مورينکه** :- (مو + ري +ن + کَ)(و ـــ مورينه).

**مورينګه** :- (مو + ري + ن + ګَ) (و ـــ مورينه).
**مورينه** :- (مو + ري + نَ) (پ تر، صف) په مور نيولې ښځه.
**مورينه**:- (مو + ري +نَ) (پ تر، صف) د بچو مور. محاورتاً: د هر څيز اصل او بنياد
**موړ** :- (مو + ړ) (اس، صف، مذ، ج ـــ ماړهٔ) هغه چې خوراک ئې کړے وي. او نور خوراک ته ئې حاجت نهٔ وي. شته من، دولتمند. هغه چې د چا نه ئې طبع مړه شوې وي او تعلق ورسره ساتل نهٔ غواړي.
**ـــ تيا** :- (ـــ ت + يا) (پ تر، اس، مو) مړېدنه، د موړ سړي حالت.
**ـــ سترګے** :- (ـــ س +تر + ګے) (پ تر، اس، صف، ج ـــ ګي) هغه چې سترګې ئې مړې وي. سېر چشم، قانع، طمع لالچ نهٔ کوونکے. (و ,, ووږ سترګے،، په مقابله کښې).
**موړګه** :- (مو + ړ+ګَ) (و ـــ موړه).
**موړه** :- (مو+ړه) (اس، مو، ج ـــ ړې) د اس يا داوښ پالان، د پالاڼ بالښتکے. د باري څاروي د کټې يو ټوکړے دے چې د څاروي د شا داوږدوالي برابر يو راغبرګ کړے شوے بالښت وي او د څاروي په شا د څادر يا شړۍ د پاسه او خرڅوړي (تورشک) د لاندې اچولے شي. ياده دې وي چې د خرڅوړي دپاسه بيا د کټې اخري څيزسرۍ (د ميزري وغېره نه جوړه کړے شوې) جالۍ اچولے شي. کومه يوه ,, پټۍ،، او يو ,, تانګ،، لري او د څاروي بدن سره ټوله کټه ترې کلکوي. پټۍ د څاروي د لکۍ لاندې د کوناټوډ پاسه راشي او تانګ د خېټې نه راتاؤ کړے شي اوتړلے شي.
**موړه** :- (مو + ړه) (اس، مو، ج ـــ ړې) پوله يابند. کېږدۍ نه چارچاپېره جوړه کړې پُوله چې د باران د اوبو او يا د ژمي د هوا نه بندلو په غرض او هم د حشراتو / چينجو د منع کولو په غرض جوړولے شي. کېږدۍ يوه خاص قسم خېمه يا تمبو دے چې کوچيان ئې لګوي.
**موړه** :- (مو + ړه) (اس، مو، ج ـــ ړې) دژرندې ددستک نه چارچاپېره جوړ لنډ لرګين دېوالګے.
**موړه** :- (مو + ړه) (اس، مو، ج ـــ ړې) د ګنډلو يو خاص قسم.
**موړه** :- (مو +ړه) (اس، مو، ج ـــ ړې) ددېوال د سر مهره.
**موړه** :- (مو + ړه) (اس، مو، ج ـــ ړې) د زمکې بره وتې حصه، ډبه، دبه، چې ډپکه يا ډپکۍ هم ورته وئيلے شي.
**موړه** :- (مو + ړه) (اس، مو، ج ـــ ړې) هغه پړخوب غوندې چې د ګُذار په وجه يا د کوم زهرناک چينجي د چيچلو په وجه په بدن باندې پېدا شي.

چـــې خوړلې مې د هجر کروړه ده
لاتر اوسه مې په زړهٔ روغه موړه ده (علي خان)

**موړه**:- (مو+ ړه) (اس، مو، ج ـــ ړې) دپښې دصفا کولو اله.
**موړه** :- (مو + ړه) (اس، مو، ج ـــ ړې) د قبض د قسم يو مهلک مرض دے.

د صحرا وېلنے خوره پرې به ورکېږي
کـــه دنس مـــوړه لـــرې وکړه باور (خوشحال)

**موړه**:- (مو + ړه) (اس، مو) اوچه تاؤکړې ګياه، چې ژمي کښې څاروؤ له ورکولے شي. تموره. پولۍ، بيده.
**موړه** :- (مو +ړه) (اس، مو، ج ـــ ړې) دچيرړو، لټونه جوړ شوے هغه غونډ شان چې د تالاؤ سورے پرې بندوي. ياورخ کښې اېښودلے شي.
**ـــ کېدل** :- پړخوب کول، ګوزار وغېره سره د بدن پړښېدل.
**موړول** :- (مو + ړ+ وُل) (مص) د ,,مړول،، جوړئ مصدر دے. (يعني ځينې فعلونه دموړول نه جوړېږي او ځينې د ,,مړول،، نه. خوراک ورکول، چې لوږه ئې ورکه شي. لوږه ورکول. شته مند کول، دولتمند کول. طبيعت سېر کول، د تعلق شوق ورکول.
**موړې** :- (مو + ړې) د ,,موړه،، جمع ده. د ,,موړه،، بدل شکل دے. چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.
**ـــ موړې کېدل** :- په بدن باندې ډېرې موړې جوړېدل.
**موړېدل** :- (مو + ړې+ دل) (مص) د ,,مړېدل،، مصدر جوړئ مصدر دے. ځينې فعلونه د يو مصدر او ځينې د بل نه جوړېږي. (و ـــ مړېدل).
**موړېدهٔ** :- (مو + ړې + ده) (و ـــ مړېدهٔ) مړېدنه، ډکېدل، (مروت واله). پېښوري کښې ډکېدل د مړېدلو دپاره د طنز په توګه وئيلے شي.
**موز** :- (مو+ ز) د نمونځ بدل شکل دے.
**موز** :- (مو + ز) (ع، اس، مذ) د نرګس ګل، نرګس زړ دے.
**موز** :- (موز) (اس، واحد، مذکر) اسپېغول، سپېغول.
**موزائيک** :- (مو +زا + يک) (انګ، صف) د وړو وړو رنګينه ټوټو نه جوړونه. پچې کاري.
**موزر** :- (مو + زر) (جر، اس، مع) د خودکار (جاجر واله) تماچې يو قسم. چې د جرمن د يو اسلحه ساز په نوم مشهور شوے دے.
**موزري** :- (مو + ز + ري) (اس، مع) د رکهنوالو ثانګه ده. لوني د لواهي دي.
**موزع** :- (مو + وز + ع) (ع، اس، مذ، ج ـــ ان / ين) توزيع کوونکے، تقسيموونکے، خوورونکے. (خصوصاً د اخبارونو خرڅوونکے.
**موزغاړے** :- (مو +ز+ غا +ړے) (اس، مذ، ج ـــ ړي) رنځړومه، هغه وړه شان کڅوړه چې رانجهٔ په کښې اچولے او ساتلے شي.
**موزون** :- (مو + زو + ن) (ع، صف، مذ، مو ـــ) وزن لرونکے، مناسب، لايق، درست، ښهٔ تناسب لرونکے. لکه: موزون کلام يا موزون قد.
**نا ـــ** :- (نا ـــ) (عف، تر، صف، مذ، مو ـــ ه) هغه چې څهٔ موزون نهٔ وي. وزن نهٔ لري يا تناسب ئې برابر نهٔ وي.
**موزونيت** :- (مو +زو + ني + يت) (ع، اس، مذ، ج ـــ ونه) وزن لرنه، برابر، تناسب لرنه، مناسبت، لياقت، درستګي.
**ـــ لرل** :- موزون ,, بودل،،. مناسبت لرل، لايق ,, بودل،، درست ,, بودل،،.
**موزه** :- (مو+ زه) (اس، مو، ج ـــ زې) جرابه، خصوصاً د څرمنې جرابه.
**موزې** :- (مو + زې) د ,, موزه،، جمع ده. د ,, موزه،، بدل شکل دے چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.

تا د سفر موزې په پښو کړې
د زيړو ګلو باغ په چا سپارې مئينه (ټپه)

**موزيک** :- (مو + زي + ک) (فر، اس، جم) موسيقي، ميوزک.
**ـــ غږول** :- موسيقي غږول، د موسيقۍ ساز يا سازونه غږول.
**د ـــ ټولے** :- (ـــ ټو + لے) (پ، تر، اس، مذ، ج ـــ لي) د موسيقۍ بېنډ، بېنډ باجې واله. د ډمانو ډله، ګروپ يا ټيم، سازيان هم ورته وئيلے شي
**موزيم** :- (مو + زي + يم) (انګ، اس، مذ، ج ـــ ونه) ميوزيم، عجائب خانه، عجائب ګر، موزه.
**موژ** :- (مو +ژ) موږ، په سهيلي لهجو کښې د موښږ يا موږ په ځاے وئيلے شي. دغه لهجو کښې ,, ږ،، په ,,ژ،، وئيلے کېږي.
**موژه** :- (مو +ژه) د ,, موژ،، بدل شکل دے.
**موږک** :- (مو+ ږک) (اس، مذ، ج ـــ ان) منږک، مږه، موش.
**موږک** :- (مو + ږک) (اس، مذ) غړے، د بدن د غوښې کبوړے. (ف ـــ ماهي ګګ).
**ـــ باز** :- (ـــ با + ز) (پ تر، اس، مذ، ج ـــ ان) ټپوس.
**موږ کورے** :- (مو + ږ + کو+ رے) (اس، مذ، ج ـــ ري) منـــږ کـــورے، وړوکے منږک، د منږک بچے.
**موږل** :- (مو + ږل) (مص) مږل، مښل.

چې د عشق په تېرۀ تېغ پورې ځان موړې
زر بـه تـوئې شـې حميده دا ستاوينې (حميد)

**موړه** :- (مـو + ړه)(اس، مـو، جـــ ړې) د زنګون پـه مېنځ خالي هـډوکـې، ډډ هډوکې

**موړي** :- (مو + ړي)(فعل) د „موړل،، مصدر نه د حال فعل (د غائب صيغه) مړي.

**موړے** :- (مو + ړے)(اس، مذ، جـــ ړي / ان) د موټي قدر، غټ او لوے لرګين يا اوسپنيز مېخ، چې په زمکه کښې ښخولې او څاروي پرې ترلے شي - يا په دېوال کښې ټک وهلے شي او جامې پرې ځوړندولے شي - دقوت او طاقت هغه مرکز چې پرې زور کوونکي متوازن وي - پشتي، حمايتي -

متل دے: سخـې د موړي پـه زور ټوپونه وهي - يا مېښـه د موړي پـه زور داسې کوي - يا فلانی دومره زور هسې نۀ کوي موړے ئې مضبوط دے - (بازاري) آله تناسل -

**ـــ د تيرې** :-(ــ د ، ت + ي + رې)(پ، تر، اس، مذ) پټ دښمن، په وښو کښې مار -

**موستۀ** :- (مو + س + ت)(اس، جم) د „ماستۀ،، بدل شکل دے -

**مؤسس** :- (مـو + س + س)(ع، اس، مـذ، مـوـــه) اساس کښېښـودلے شوے، هغه چې بنياد ئې کښېښودلے شوي وي -

**مؤسس** :-(مُ / مو / سس)(ع، اس، مذ، جـــ ان / ين) اساس کښېښودونکے، بنياد کښېښودونکے، اره کښېښودونکے باني -

**ـــ اعضاء** :- (ـــ ا + ع + ضا)(عرف، تر، اس، ج) بنيا کښېښودونکي غړي، بانيان -

**مؤسسات**:- (مو + س + س + ات)(ع، ج) د مؤسس جمع ده - ادارې -

**دولتي ـــ** :- (دو + ل + تي ـــ) -

**حکومتي ـــ** :- (ح + کو + م + تي ـــ) دولتي مؤسسې، د حکومت ادارې - سرکاري محکمې -

**صنعتي ـــ** :- (صـن + ع + تـي ـــ) صنعتي موسسـې، صنعتي ادارې، کارخانې، فيکټرياني -

**موسسه**:- (مُ / مو ـ س + س + سه)(اس، مو، جـــ سې / ات) اداره، محکمه -

**موسسه** :- (مُ / مو + س + س + سَ)(اس، مو، جـــ سې) د „موســـس،، تانيث دے - بنياد کښېښودونکې ښځه -

**موسکا** :- (مـو + س + کا)(اس، مـو، جـــ ګانې) موسېدنه، تبسم، بې اوازه خندا -

**موسکارل** :- (مو + س + کا + رل)(مص) د سپي د بللو اواز، تو کول - سپے چا پسې کول - سپے پارول -

بې دياره په غماز په رقيب تېر شوم
موسکارلي د دلبـر ګوره سګان لړ (زړه پانګه)

**موسکارلے** :- (و + س + کا + ر + لے)(پ تر، اس، فا، جـــ لي) توشوے، په تو تـو بللے شوے، (تو د سپي دبللو اواز دے)(سپے) پارولے شوے، چا پسې کړے شوے، هوش کړے شوے -

**موسکندې** :- (مو+س + کن + دې) د „موسکندے،، تانيث دے -

**موسکندے** :- (مو + س + کن + دے)(اس، مذ، جـــ دي) موسکے، په تبسم، متبسم، موسېدلے -

دا اسمان په ترورمې کښې بربښنا وکړه
کـه مې وليدۀ غاښونه موسکندي ستا (حسين)

**موسکوا** :- (مو + س + ک + وا)(اس، مع) مسکو، ماسکو، د روس دارالحکومت

**موسکېدل** :- (مـو + س + کې + دل)(مص) موسکا کول، تبسم کول، متبسم کېدل، سري شان بې اوازه خندا کول -

**موسل** :- (مو + سل)(اس، مذ، ج، ـــ ونه) د درمن د پاکولو لوے غلبېل، چې پخوا به مليانو جوړول -

د کابـل ذکر حاصل کړه
په خپل دل ئې محصل کړه
د نفي چـج جارو کړه
د اثبات الف مـوسل کړه (زړه پانګه له ارزاني)

**موسل** :-(مو + سل)(مص)(وـــ موسکېدل) -

**موسلي** :- (مو + س + لي)(اس، مو) يو قسم بوټے دے -

کبـابـه مصطګي شونډ کـړه
موسلي(موصلي) زعفران پېوند کړه (زړه پانګه له طبي فوائد)

**موسم** :- (مـو + سم)(ع، اس، مـذ، جـــ ونه / مواسم) کال د اب و هـوا او د پېداوار په لحاظ په څلورو برخو وېشلې کېږي - هرې يوې برخې ته موسم وائي - لکه: د اوړي موسم -

**ـــ بدلېدل** :- د هوا ګرمي يا سړزي بدلېدل، هوا په بل رنګ کېدل - محاورتاً: حالات بدلېدل - خيالات بدلېدل -

**موسمي** :- (مـو + س + مـي)(ع، ف تر، صف) موسم سره تعلق لرلو والـه، موسم ته منسوب -

**ـــ اوربښتونه** :- (ـــ او + ربښ + تو + نَه)(ع پ تر، اس، ج) موسمي بارانونه، د پشکال بارانونه يا د ژمي بارانونه -

**ـــ بارانونه** :- (ـــ با + را + نو + نَ)(وـــ موسمي اوربښتونه) -

**ـــ تبه** :- (ـــ ت + ب)(ع پ تر، اس، مو، جـــ بې) هغه تبه چې په يو خاص موسم (مني) کښې راځي، مليريا، د مني تبه -

**موسمي** :- (مـو + س + مـي)(صف) د „موزنبيق،، بـدل شکل دے - عموماً مالټو سره راځي - يعني موسمي مالټې، هغه مالټې چې په اول سر کښې په موزنبيق کښې پيدا شوې وې -

**موسوم** :- (مو + سو + م)(ع، اس، صف، مذ، مو ـــ ه) اسم ورکړے شوے، نوم کښېښودے شوے - نوم لرونکے - (عموماً ورپسې د „به،، توري راځي - لکه الموسوم به ....) -

**ـــ کول** :- نوم کښېښودل، نوم ورکول، په نوم بلل -

**ـــ کېدل** :- نوم کښېښـودے کېـدل، په کوم نوم بللے کېـدل - په کـوم نوم نومېدل، د چا په نامه کېدل -

**موسیٰ خېل** :- (ددغه)(اس مع) د ماموزئيو څانګه ده - (ماموزئ، لشکر زئ) اورکزي دي - د موسیٰ زئيو څانګې: عبدالرحمان خېل او ميرکلان خېل -

**موسونه** :-(مـو + س + ؤ + نَه)(مص) مسکے کونـه، متبسم کونه، په مسکا کونه -

**موسوونکے** :- (مـو+س +وو+ن+کے)(پ تر اس، فا، مذ، جـــ کي) په مسکا کوونکے، متبسم کوونکے -

**موسوي** :-(مـو + س + وي)(ع تر، صف) د حضرت موسیٰ عليـه السـلام منونکے، عبراني، د بني اسرائيلو يو فرد، يهودي - عبراني ژبه -

**موسیٰ** :- (مو + سا)(اس، مع) د بني اسرائيلو د يو لوے پېغمبر نوم دے چې تورات پرې نازل شوے ؤ - په قرآن شريف کښې ئې هم ډېر ذکر شـوے دے - د نارينه ؤ په نومونو کښې استعمالېږي - (په عبراني کښې دا نوم موشے يا موشيه دے -)(په نظم کښې دا نوم ځيني وخت „مُو + سي،، هم تلفظ کېږي) -

**سنګ ـــ** :- (سن + ګ ـــ)(عف، تر، اس، مذ) د تور رنګ يو کاڼے دے - د

تور رنګ کهربا.

**موسیٰ ابوسید**:- (مو+سا+ا+بو+سې+د)(اس،مع) د مداخېلو څانګه ده. (مداخېل، عیسیٰ زئ) یوسفزي دي.

**موسیٰ خېل**:-(مو+سا+خې+ل)(اس،مع) د عیسیٰ زئیو څانګه ده. ترکاڼي دي.

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس،مع) د ورکم خېلو څانګه ده. (ورکم خېل، ایپ خېل، سالارزئ، الیاس زئ) بنېروال دي. (په بله شجره کښې د ورکم خېل په ځاے ورخان خېل او د ایپ خېلو په ځاے عیب یا ابپ خېل لیکلے دے او هم دا درست ښکاري. (بخاري).

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس، مع) د مخوزئیو څانګه ده. (مخوزي، نسوزي، دالیاس زئ) بنېروال دي.

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس، مع) د نورزئیو څانګه ده. (نورزي، مالیزئ) بنېروال دي.

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس، مع) د کوز سولي زئیو څانګه ده. (کوز سولیزئ، بائیزئ، اکوزئ) یوسف زئ دي.

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس، مع) د ایا خېلو څانګه ده. (ایا خېل، اشازي، الیاس خېل) بنېروال دي.

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس،مع) د بامي خېلو څانګه ده. (بامي خېل، بابوزئ، بائیزئ، اکوزئ) یوسفزي دي.

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس،مع) د سپاه څانګه ده. (سپاه، بائي زئ) مهمند دي.

**موسیٰ خېل**:- (مو+سا+خې+ل)(اس، مع) یوه لویه قبیله ده، اصلاً دویې د پني قبیلې سره تعلق لرلو. خو وروستو ترې جدا شو او د یوې ځانله قبیلې په حېث شهرت لري. ددویې علاقې ته هم موسیٰ خېل وائي. د دویې اهمې دوه قبیلې دي یعني لهرزئ او ببل خېل.

**موسیٰ خېل**:- (مو+سا+خې+ل)(اس، مع) د نرمي خېلو څانګه ده. (نرمي خېل، بقا خېل، ولي خېل، اتمان زئ، درویش خېل) وزیر دي.

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس، مع) د بوبالیو څانګه ده. (بوبالئ، شنګي، بهلول زئ) محسود دي.

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس،مع) د هاتي خېلو څانګه ده. (هاتي خېل، سین خېل، احمد زئ، درویش خېل) وزیر دي. ددې موسیٰ خېلو څانګې دادي: علي خېل، توري خېل او ولیګئ.

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس، مع) د خدي خېلو څانګه ده. (خدي خېل، ملي زاد) دوړ دي.

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس، مع) د مصري خېلو څانګه ده. مصري خېل، بستي خېل، ګلئ، ادم خېل) افریدي دي.

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس، مع) د یار علي خېلو څانګه ده. یار علي خېل، کمرائے یا کمر خېل) افریدي دي.

**موسیٰ خېل**:- (ددغه)(اس، مع) د منتوالو څانګه ده. منتوال، ماموزئ یا محمد زئ) قبلئیز زېمخت دي.

**موسیٰ زئ**:- (مو+سا+زئ)(اس،مع) د منصور څانګه ده. ګدانۀ دي.

**موسیٰ زئ**:- (مو+سا+زئ)(اس، مع) د ناصرو څانګه ده. غلزئ دي. (کډه پسري خلق دي).

**موسیٰ زئ**:- (ددغه)(اس، مع) د سین خېلو څانګه ده. (سین خېل، میاخېل) لوهانه پاونده دي.

**موسیٰ زئ**:- (ددغه)(اس، مع) د حمیزئ څانګه ده. (حمیزئ، اوباخېل) شیراني دي.

**موسیٰ زئ**:- (ددغه)(اس،مع) د استرانه څانګه ده.

**موسیٰ زئ**:- (ددغه)(اس، مع) د ناصرو څانګه ده. غلزئ دي.

**موسیٰ زئ**:- (ددغه)(اس، مع) د سلیمان خېلو څانګه ده. غلزئ دي.

**موسیٰ زئ**:- (مو+سا+زئ)(اس، مع) د ببل خېلو څانګه ده. موسیٰ خېل دي

**موسیٰ کور**:- (مو+سیٰ+کو+ر)(اس، مع) د مېمنه څانګه ده. (مېمنه، خوائي زئ) مهمند دي.

**موسیٰ یي**:-(مو+سا+ئ+ي)(صف،اس، ج ــان) د موسیٰ علیه السلام منونکي. بني اسرائیلو یهودیان. (دا لفظ د عیسائي په قیاس درست نۀ دے. ځکه چې یهودیان حضرت موسیٰ علیه السلام د خداے پاک یو بنده او پېغمبر مني. هر کله چې عیسائیان (یا مسیحیان) حضرت عیسیٰ علیه السلام ته د خداے زوے وائي په همدغه قیاس د ,,محمدي،، یا ,,محمڈن،، نوم هم غلط دے. استعمال ئې ترک کړے بویه. (خیال بخاري).

**موسیاني**:- (مو+س+یا+ني)(اس، مع) د نو دهاني څانګه ده. پني دي.

**موسپدل**:- (مو+سې+ل)(مص)(و ــ مسکېدل).

د رقیب ګونه چې بده شوه لیدۀ دې
چې وماته په ټولي کښې موسېدلے (خوشحال)

**موسېدلے**:- (مو+سې+د+لے)(اس، مف،مذ، ج ــ لي) موسکے شوے، متبسم شوے، موسېدلے.

**موسېدونکے**:- (مو+سې+دو+ن+کے)(پ تر،اس،مذ، ج ــ کي) مسکېدونکے، مسکا کوونکے، تبسم کوونکے، خندېدونکے.

**موسیزئ**:- (مو+سي+زئ)(اس، مع) د نوح زئیو څانګه ده. ایسوټ دي.

**موسیقار**:- (مو+سي+قا+ر)(عف،تر،اس،مذ، ج ــان) یو قسم سازدے. چې په کښې د مثلث (درې ګوټیز) په شکل کښې لوئې وړې شپېلۍ یو ځاے شوې وي. یو فرضي مارغۀ دے. وائي چې ددۀ په مښوکه کښې ګڼ سوري وي چې ترې په رنګ رنګ اوازونه اوځي او د موسیقۍ ماهرانو موسیقي ددغې مارغۀ نه اخذ کړې ده. د موسیقۍ د فن ماهر.

**موسیقاره**:- (مو+سي+قا+ره)(عف، تر،اس مو، ج ــ رې) د ,,موسیقار،، تانیث دے.

**موسیقي**:- (مو+سي+قي)(اس، مو) د سندرو وئیلو یا دسازونو د غږولو فن، میوزک. د میوزک فن یا علم. د مختلف قسم سازونو غږونه.

**ــ دن**:- (ــ دا+ن)(ع، ف،تر، مذ، ج ــان)(و ــ دموسیقۍ پوهان) هغه کس چې د موسیقۍ په خوبیو او عېبونو پوهه وي.

**ــ دانه**:- (ــ دا+نه)(ع پ تر،اس، مو، ج ــ نې) د ,,موسیقي دان،، تانیث دے.

**د سنفوني**:- (د+سن+فو+ني ــ)(انګ، فر،تر،اس،مو) د مغربي موسیقۍ یو خاص قسم ترانې موسیقي، د موسیقۍ هم اهنګي.

**موسیقي**:- (مو+سي+قي) د ,,موسیقي،، جمع ده. د ,,موسیقي،، بدل شکل دے چې د مغیرهٔ توړو سره راځي.

**ــ والا**:- (ــ وا+ل)(عپ تر،اس،مذ) هغه کس چې د موسیقۍ الات یا اله غږوي. میوزیشن ډم، فنکار.

**د ــ آلات**:- (د ــ آ+لا+ت) هغه الات چې موسیقي پرې غږولے شي. د میوزیک الات، سازونه.

**د ــ دسته**:- (د ــ دس+ته).

**د ــ ډله**:- (د ــ ډ+لَ)(ع، پ تر،اس، مو، ج ــ ې) هغه ټولے چې په جمع مختلف قسم سازونه غږوي. دموزیک ډله. د بېنډ باجې ټولے.

**د ـــ ماهر** :- (د ـــ ما +هر).

**د ـــ پوهان** :- (د ـــ پو +ها+ن) (عپ،تر،اس،مذ،ج ـــ ان) د موسیقۍ د فن پوهان ، دموسیقۍ په فن کښې مهارت لرونکې.

**موسی** :- (مو+ سی) (اس ، مو) ګول یا غونډ کړې چپراخ کانۍ چې هلکان ورسره لوبې کوي .پیتو یا پیتۍ چې اکثر د ټیکرۍ یا پیکرۍ نه هم جوړولې شي او په دغه توګه د پالش ډېرې هم استعمالولې شي.چیندرو وغېره کښې دا د سامان یا الې په توګه پکارېږي.

**موش** :- (مو +ش) (ف ،اس،مذ) مږک ،مږه،مژک ،مږه.

**ـــ ګیر** :- (ـــ ګي + ر) (ف،تر،اس،مذ ، ج ـــ ان) یوښکاري مارغۀ دې چې مږکان یا چرچنې نیسي . ټپوس ، غلیواز د مږکانو د نیولو پنجره یا ښکر یا لټ.

**ـــ ګیرک** :- (ـــ ګي +ر+ک) (ف تر ،اس،مذ ، ج ـــ ان) د ,,موش ګیر ،، تصغیر دې.

**موشاده** :- (مو_ شا +دَ) (اس، م، ج ـــ دې) شکل ، مخ ، صورت ، بدمخ ، بې ډوله مخ ، طنزاً: ښۀ مخ ته هم د طنز په طور وائي .لکه: دې موشادې ته خودې لړوګوره.

**ـــ دې ورکه شه** :- (جمله) محاوره کښې دا چا ته د شړلو په وخت وئیلې شي.

**ـــ ښکاره کول** :- (طنزاً) شکل ښکاره کول ،راتلل، پېښنه کول.

**ـــ ورانول** :- شکل بدلول،خفګان ښکاره کول.څوک په مخ وهل او شونډې سپېرمې ورله پړڅول.

**دې ـــ ته خودې لړ وګوره** :-(جمله) طنزاً د چا د خبرې نه د انکار په موقع وئیلې شي.چې دې شکل ته خو دې لړوګوره.یعنې ستا شکل ددې څیز قابل نۀ دې.یا په څۀ د چا دعوٰی غلطه ګڼل.

**موشادې** :- (مو+ شا +دې) د ,,موشاده،، جمع ده . د ,,موشاده ،، بدل شکل چې د مغیرۀ ؤ تورو سره راځي.

**موشخولا** :- (مو + ش+ خو + لا) (اس، مو ، ج ـــ ګانې) د,,مشغولا،، بدل شکل دې.(و ـــ مشغولا).

**موشخولتیا** :- (مو+ ش+ خُل + ت + یا) (و ـــ مشغولتیا).

**موشک** :- (مو+ شک) (اس ،مذ ، ج ـــ ان) جاسوس، تجسس کوونکې،مخبر پټ پټ حال معلوموونکې .رپټي.

**موشکه** :- (مو +شکَه) (اس،مو،ج ـ کې) د ,,موشک ،،تانیث دې.

**موشن** :- (مو + شن) (انګ،اس ،مذ ، ج ـــ ونه) حرکت، لـه ځایه خوځیدنه، چال،تګ، تحریک، تجویز، یو دست.

**موشه** :- (مو+ شَ) (اس،مو،ج ـــ شې) تور خر چې خولۀ ئې هم توره وي.

**موښا** :- (مو +ښا) (اس ، مو) مالش ، موښه.

**موښانه** :- (مو+ ښا +نَه) (اس،مو،ج ـــ نې) د شوملو شاربلو مشک،غړکه.

**موښتۀ** :- (مو+ښ+ت) (اس،مو،ج ـــ تې) د غنمو وغېره قوره.

**موښل** :- (مو+ ښل) (و ـــ مښل).

**موښلې** :- (مو + ښلې) (اس، مف،اس، مذ ،ج ـــ لي) مښلې، مړلې شوې.

**موښنه** :- (مو + ښن +نَ) (حمص) مښنه، مړنه.

**موښولې** :- (مو+ ښ+ و+لې) (اس،مف، مذ ، ج ـــ لي) (و ـــ مښلې).

**موښۀ** :- (مو +ښۀ) (اس،جم) مالش ،موښا .

**موښې** :- (مو+ښې) (فعل) د,,موښل ،، مصدر څخه دحال فعل (د غائب صیغه) مړي.

**موصلي** :- (مو+صه+ لي) (صفت) د مصلي مغفن، نمونځ ګذار، اسم واحد ، مذکر، شاخېل ، خاکروب.

**موصوف** :- (مو +صو + ف) (ع ،اس، مف، مذ، مو ـــ ه) صفت کړې شوې ، تعریف کړې شوې،د چا چې صفت یا تعریف شوې وي . د چا چې (ښۀ) بیان مخکښې تېر شوې دې.

**موصول** :- (مو+ صو + ل) (ع ،اس،مف،مذ ،مو ـــ ه) حاصل کړې شوې ، وصول شوې،ملاؤ شوې. رسېدلې.(ګرامر) هغه اسم ته وائي. کوم چې بغېر د ,,صلې،، څخه پوره معنې نۀ ورکوي.

**موضح** :-(مو + ضح) (ع ، اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) واضح کړې شوې. واضح ، روښانه.

**موضح** :-(مو + ضح) (ع،اس ، صف، مذ ، مو ـــ ه) وضاحت کوونکې ، روښانه کوونکې.

**موضع** :- (مو + شع) (ع ،اس، مو،ج ـــ عې / مواضع) ځاې ، کلې ، بانډه. (په پښتو کښې د ع اواز ډېر سپک او هوار وئیلې شي).

**موضع دین تیر** :- (مو+ ضع + دي + ن+ تې+ېر) (اس،مو) د مامن کور ځانګه ده . (مامن کور ، کنډۍ ؤعیسی خېل) مهمند دي .(په بله شجره کښې د مامن په ځاې ,,مامون،، او د کنډۍ په ځاې کنډې لیکلې دې).

**موضوع** :- (مو +ضو + ع) (ع،اس، مف ، مو ، ج ـــ ګانې / آت) وضع کړې شوې .مدعا ، مضمون .هغه څیز دکوم په حقله چې بحث یاتقریر کولې شي یا مضمون یا مقابله لیکلې شي. (ځینې خلق ئې مذکر ګڼي او جمع ئې موضوعونه کوي) د ځانه جوړ کړې شوې،عموماً د حدیث په حقله وئیلې شي .چې دا حدیث موضوع دې یعنې دروغ دې هېڅ اصل نۀ لري.

**د ـــ نه خارج** :- (د ـــ ن + خا+ ر +ج) (ع پ ، تر ، فر ،مو ـــ ه) د بحث نه باهر ، هغه چې موضوع سره تعلق نۀ لري.

**موطن** :- (مو + طن) (اس، مذ ، ج ـــ ونه / مواطن) خپل ملک ، د پلار نیکۀ ملک ، د پیداوښت ملک ، وطن.

**موعد** :-(مو + عد) (ع ،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د وعدې وخت ، د وعدې ځاې ، لکه: دملاقات موعد .میعاد ، موده ،وعده.

**موعظت** :- (مو ، ع + ظ + ت) (ع،اس،مذ ،ج ـــ ونه) نصیحت کونه ، وعظ کونه ، نصیحت پند ورکونه.

**موعظه** :- (مو + ع + ظَ) (و ـــ موعظت).

**موعود** :- (مو + عو+د) (ع ،اس،مف ، مذ ،مو ـــ ه) وعده شوې، هغه څیز یا خبره وغېره چې وعده ئې شوې وي.

**موفق** :- (م + و + فْ + فَ + ق) (ع،اس،مف،مذ ،مو ـــ ه) توفیق ورکړې شوې.د نېک کار د کولو توان او سامان ورکړې شوې. کامیاب.

**ـــ کول** :- توفیق ورکول ، کامیابه کول ،د کامیابۍ سامان مهیا کول.

**ـــ کېدل** :- توفیق موندل ، د کوم (ښۀ کار د کولو دپاره توان او سامان مهیا کېدل) ، کامیابېدل.

**موفق** :- (م + و + ف + فق) (ع ، اس ، صف ،مذ ، مو ـــ ه) توفیق ورکوونکې ، د کوم کار د کولو توان او سامان مهیا کوونکې.

**موفقانه** :- (م+وف + ف + قا +ن) (عف، تر ، تف) کامیابۍ سره.

**موفقیت** :- (م+ وف + ف + قـي + ي + ت) (ع،اس، مذ) توفیق موندنه ، کامیابي.

**ـــ حاصلول** :-

**ـــ موندل** :-

**ـــ میندل** :- کامیابي حاصلول ، توفیق موندل ،د کوم کار د کولو سامان موندل یا حاصلول ، کامیابېدل.

**په ډېر ـــ** :- (پ +ډې + ر ـــ) په ډېره کامیابۍ سره.

**موفور** :- (مو + فو+ ر) (ع،اس،مف ،مذ ،مو ـــ ه) وافر کړې شوې ، ډېر ،

بسیار ، په کثرت.

**موقت** :-(م+ وقْ+ قَت)(ع،اس،مف،مذ،مو ـه) په کوم خاص وخت تړاکلے شوے ، وخت یا زمانې سره معین شوے.

**په ـــ ډول**:- (ع،پ تر،تف) وقتي طورسره ، عارضي طور سره.

**موقتاً** :- (م+ قُ+ ق+ تن)(ع ، تف) عارضي طور سره.

**موقتي** :- (م+وق+ قَ+ تي)(عپ ، تر ،اس ، ظر) وقتي طور سره، عارضي . لکه: موقتي پُل.

**موقر** :-(م+ وق +قر)(ع ،اس مف ،مذ ،موـــه) وقر ورکړے شوے ، درونډ کړے شوے ، عزت ورکړے شوے ، عزتمن ، درونډ.

**موقع** :- (مو+ قع)(ع،اس، مو، ج ــ عې/ مواقع) د واقع کېدو ځاے ، ځاے ، محل ، خاص وخت ، خاص مقام یا ځاے ، مناسب وخت.

**ــــ په موقع** :- (ـــ پ ،مو+ قع)(عپ،تر، تف) وخت په وخت ، په ځینې ځینې وخت ، ځاے په ځاے.

**ــــ پیدا کول** :- مناسب وخت پیدا کول.

**ــــ پیداکېدل**:- مناسب وخت پیدا کېدل.

**ــــ پېژندل** :- د یو کار دپاره مناسب وخت پېژندل.

**ــــ خطا کول** :- مناسبه موقع دلاسه وتل ، موزون وخت د ګوتو وتل.

**ــــ شناس** :- (ـــ ش+ نا+ س)(عف، تر،صف،مو ـــ ه) هغه سړے چې د کوم کار دپاره د مناسب وخت انتخاب کولے شي .دمناسب وخت نه فائده اخستونکے.

**ــــ شناسي** :- (ـــ ش + نا ـ سي) د کوم کار دپاره د مناسب وخت پېژندنه.

**ــــ ضائع کول** :- د مناسب یاموزون وخت نه فائده نۀ اخستل .موزون وخت دلاسه ورکول.

**ــــ ضائع کېدل** :- مناسب وخت د لاسه وتل ، دموزون وخت نه / څخه فائده نۀ اخستل ،مناسب وخت تېرېدل.

**ــــ کېدل** :- مناسب وخت ته انتظار کول.د وقوعې ځاے کتل.

**ــــ لاس ته راتلل** :-

**ــــ ګوتو ته راتلل** :- مناسبه موقع بیا موندل ، موزون وخت حاصلېدل . مهلت لاس ته راتلل ، وخت ملاوېدل.

**ــــ موندل** :- مناسب وخت لاس ته راتلل.

**ــــ نۀ ده** :- مناسب وخت نۀ دے.دا وخت موزون نۀ دے.

**ــــ نیول** :- په خاص ځاے یا مقام کښې (د څۀ کار دپاره) کښېناستل.

**ــــ ورکول** :- مهلت ورکول ، وخت ورکول.

**په ــــ** :- (پ+ ـــ)(عپ ، تر، اس ، ظر) په خاص ځاے یا وخت.

**په ــــ نیول** :- د واردات په موقع ګرفتارول ، عین د جرم کولو په وخت یا ځاے کښې نیول. محاورتاً : ځوک د وتلو نه عین اول. را ایسارول.

**موقعې** :- (مو+ ق عې) د ,,موقع ،، یا ,,موقعه ،، جمع ده .د موقع یا موقعه بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**بې ــــ**:- (بې ـــ)(عپ تر ، صف) په داسې وخت چې د یوې خبرې دپاره مناسب نۀ وي.نامناسبه وخت.

**د ــــ ګواه** :- (د ـــ ک+ وا+ه)(عپ تر ،اس ، مذ ،ج ـــ ان) هغه ګواه چې کومه وقوعه په خپلو سترګو لیدلې وي.

**موقعیت** :- (مو+ ق+ عي+ یت)(ع ،اس ، مذ) درست وخت ، مناسب وخت ، محل وقوع.

**جغرافیائي ــــ** :- (جغ+ را+ ف +یا+ئي ـ)(عف ، تر ، اس ، مذ) د جغرافیې په لحاظ سره محل وقوع.

**موقف** :- (مو+ قف)(ع ،اس ، مذ ،ج ـــ ونه/ مواقف) د ودرېدلو ځاے ،د ایساریدلو ځاے (مع) عرفات ، چې د مکې شریفې نه یو څو میله لرې دے.

**ــــ بیانول** :-

**ــــ څرګندول** :-

**ــــ ښکاره کول** :- خپله نقطه نظر بیانول ، خپل خیال څرګندول ، خپله نظریه وړاندې کول.

**اجتماعي ــــ** :- (اج+ ت+ ما+ عي ـــ)(عف ، تر ،اس ، مذ) د عامو خلقو نظریه.

**یو ــــ نیول** :- یوه نظریه اختیارول ، یو نقطه نظر اختیارول.

**موقوت** :- (مو+ قو+ ت)(ع ،اس ،مف، مذ ،مو ـــ ه) وخت ورکړے شوے .د متعین وخت سره تعلق لرونکے ، وخت سره تړلے.

**ــــ خوورونې**:- په مقرره وخت باندې دخبرونو وغېره خوورونې.

**موقوف** :- (مو+ قو+ ف)(ع ،اس ، مف ، مذ ، مو ـــ ه) ایسار کړے ، ودرولے شوے .برخاست کړے/ شوے ،د نوکرۍ نه ایستلے شوے . ملتوي شوے ، بل وخت ته اړولے شوے .هغه حرف (توری) چې نۀ خو په دغه حرف کوم حرکت وي او نۀ ددې نه په اولنې حرف . هغه حدیث چې د راویانو سلسله ئې تر صحابه ؤ پورې رسي. منحصر کړے شوے. وقف کړے شوے.

**ــــ کول** :- برخاست کول ،د نوکرۍ نه اېستل ، کوم کار بلې موقعې یا بل وخت ته پرېښودل.منحصر کول.

**ــــ کېدل** :- د نوکرۍ نه اېستلے کېدل ، بل وخت یا بلې موقعې پورې پرېښودے کېدل. انحصار لرل ، اړه لرل.

**موقوفول** :- (مو+ قو+ ف +و + ل)(مص)(و ـــ موقوف کول).

**موقوفه** :- (مو+ قو+ ف)(عف، تر ،اس،مو، ج ـــ ات) د ,,موقوف،، تانیث دے. وقف کړے شوے (زمکه وغېره).

**موقوفي** :- (مو +قو+ في)(عف تر ، اس ، مو) موقوف کېدنه ، د نوکرۍ نه/ څخه وتنه ، برطرفي. التوا ،انحصار ، اړه لرنه.

**موقوفېدل** :- (مو+ قو+ فې+ د +ل)(مص)(و ـــ موقوف کېدل).

**موک** :- (مو+ ک)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) رشوت ، بډې.

**ــــ اخیستل** :- رشوت اخیستل ، بډې اخیستل.

**ــــ خور** :- (ـــ خو+ ر)(پ تر ،اس مذ ، ج ـــ خواره) رشوت خور ، رشوت خوړونکے ، بډې خور.

**ــــ خوره** :- (ـــ خ+ و+ رَ)(پ تر ،اس،مو، ج ـــ رې) د ,,موک خور،، تانیث دے.د بډې خور تانیث دے.

**ــــ خوري** :- (ـــ خو+ ري)(پ تر ،اس ، مو) رشوتخوري ، رشوت خوړنه.

**ــــ ورکول** :- رشوت ورکول ، بډې ورکول.

**مؤکد** :- (مُ+ ا+ کْ+ کَ+ د)(ع،اس،مذ ، مو ـــ ه) تاکیدشوے، زور وراچولے شوے. مضبوط.

**ــــ کول** :- ضرور کول (خبره) کلکول.

**ــــ کېدل** :- ضرور کېدل ، خبره وغېره کلکېدل.

**مؤکد** :- (مُ+ ا+ کْ+ ک+ دْ)(ع ،اس ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) تاکید کوونکے ، زور اچوونکے ، ضرور کوونکے.

**مؤکداً** :- (مُ+ ا+ کْ+ کَ+ دَنْ)(ع ، تف) په تاکید سره ، د تاکید په طور.

**مؤکده** :- (م+ ا+ کْ+ کَ+ د)(عپ تر ،اس،مو) هغه کار چې تاکید ئې شوے وي.

**سنت ــــ** :- (سُ+ نْ+ نَ+ تِ) هغه سنت چې د کولو دپاره ئې تاکید شوے وي.

**مؤکل** :- (مُ+ا+کْ+کَ+ل)(ع ، اس ،مذ ، ج ـــ ان / ین) هغه سړے چاته چې کوم کار سپارلے شوے وي۔گماشته۔امانت دار ۔نمائنده ، وکیل۔ کړتون۔

**مؤکل** :- (مُ+ا+ک+ک+ل)(ع ،اس ، صف ، مذ ، ج ـــ ه)کار سپارونکے ، هغه سړے چې وکیل اُټاکي۔

**موکله** :- (مُ+ا+کْ+کَ+لَ)(عپ تر ،اس، مو، ج ـــ لې) د ,,موکل،، تانیث۔

**موکه** :-(مو+ک)(اس ، مو ، ج ـ کې)د نمدې نه جوړ شوے پاپتاوے ، پنډۍ تړ

**موګل باره خان خېل** :- (مو+ګ + ل + ب + ا + ر+ه+خا + ن + خې + ل)(اس ، مع) د خواجه خدین څانګه ده ۔ (خواجه خدین ، اشازئ ، عیسیٰ زئ) بنېروال دي

**موګل خېل** :- (مو+ګ+ل+خې+ل)(اس ، مع) د یونس خېلو څانګه ده ۔ یونس خېل ، بستي خېل ، ګلی ، ادم خېل) افریدي دي۔

**موګي خېل** :- (مو+ګي+خې+ل)(اس ،مع) د ګریرئیو څانګه ده ۔ (ګریری ، شمي خېل ، پلي خېل ، منزی ، علي زئ) محسود دي۔

**مول** :- (مو+ل)(اس، مذ، ج ـــ ونه / ینه) د ,,مال،، بدل شکل دے۔

**مول** :- (مو+ل)(هـ ، اس ، مذ) قیمت ، بیعه۔

ددۀ مول دے دواړه کونه
پـــه لک په کروړیدم شي (ارزاني)

اصل ، سرمایه ، پنګه۔

چـــې سودا ته شو د عشق عذر غلول پېښي
سود لاڅۀ چې دریغه شو لاړ نیم په مول پېښي (علي خان)

**مول** :- (مو+ل)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د خبرې راز او حقیقت ۔ اصل ، بنیاد ۔

**مول** :- (مو+ل)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د پټکي شمله چې غوړونه او زنه پرې تړي۔ لکه : د مول ډول پټکے۔

**ـــ وهل** :- د پټکي یو ول تر لاندې تېر ول۔یارے کول ، جنګ ته تیارېدل۔ مور د زوئي په وادۀ ډول وهي۔بیا جګړو ته هم مول وهي۔ (متل)۔

**ـــ کړے** :- (ـــ ک+ړے)(پ تر ، اس ، مف) د پټکي هغه ول چې د زنې تر لاندې تېر کړے شوے وي۔ لکه : د پټکي مول کړے پلو ئې راخلاص کړ۔

**ـــ وهونکے** :- (ـــ و+هو+ن+کے)(اس ، فا ،مذ ، ج ـــ کي) هغه سړے چې پټکے د زنې د لاندې نۀ ورتېر کړي۔

**مولا** :- (مو+لا) اس ، مع) د ورسپین څانګه ده ، بیټني دي۔

**مولا** :- (مو+لا)۔

**مولیٰ** :- (ددغه) اقا، مالک، سردار، خداے پاک۔ ازاد کړے شوے غلام۔

**ـــ علي** :- (ـــ ع+لي)(ع تر ،اس، مع) حضرت علي کرم الله وجهه مراد دے۔

**مولا**:- (مو+لا)(اس ، مذ ، ج ـــ یان) د ,,ملا،، بدل تلفظ دے ۔مُلا ، عالم ، د جماعت (مسجد) امام۔

**مولاخېل** :- (مو+لا+خې+ل)(اس ، مع) د ایاخېلو څانګه ده ۔(ایاخېل ، اشازئ ، الیاس زئ) بنېروال دي۔

**مولا یا ملا خېل** :- (مو+لا+ یا مُ+لا+خې+ل)(اس ، مع) د پاونده ؤ یو وړه شان کورنی ده۔

**مولازئ** :- (مو+لا+ز+ئ)(اس ، مع) د پانیزئیو څانګه ده ۔ (پاني زئ ، هارون خېل ، سناتیه) کاکړ دي۔

**مولانا** :- (مو+لا+نا)(ع ، تر، اس ، مذ) د ,,مولا، او,,نا،، مرکب دے ۔یعني زموږ ,,مولا،، زموږ اقا ، مالک ، یو لقب دے چې پخوا د مثنوي مصنف جلال الدین رومي دپاره مخصوص وو ۔خو اوس هر عالم او ملا ته وائي۔

**مولائي** :-(مو+لا+ئي)(اس، مع) دارودي ۔دوه قسمه لري : سپین او خړ ۔ سپین په کښې اعلیٰ وي د څیګر د درد دپاره او د تور خي زکام دپاره ئې خلق خوري۔

**مولائي** :-(مو+لا+ئي)(و ـــ مومیائي)۔

**مولت** :- (مو+ل+ت)(اس، مذ ، ج ـــ ونه) د ,,مهلت،، بدل شکل دے ۔ (و ـــ مهلت)۔

**مولد**:- (مو+ل+د)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د پېدا کېدو ځاے ، د پېدائش ځاے (ښهر یا کلے)۔

**مولد**: (مو+ل+د)(ع،اس، فا، ج ـــ ان) پېدا کوونکے۔

**ـــ الامراض** :- (ـــ (د+ل) ا+م+را+ض)(ع، تر،اس،مذ) د مرضونو پېدا کوونکے۔

**ـــ الماء** :- (ـــ (د+ل)+ما+ء)(ع ،تر ، اس) هائیډروجن۔

**مولد** :- (م+و+ل+د)(ع ، اس ، صف ،مذ ،مو ـــ ه) هغه عجمي سړے چې په عربو کښې لوے شوے وي ۔ هغه عجمي لفظ کوم چې عرب په خپله ژبه کښې استعمالوي۔

**مولده** :- (م+و+لْ+لِ+د) د ,,مولد،، تانیث دے۔

**مؤلف** :- (م+ا+ل+لِ+ف)(ع،اس،مذ ، مو ـــ ه) تالیف شوے ، جمع کړے شوے هغه کتاب چې د نورو کتابونو په مدد لیکلے شوے وي۔

**مؤلف** :- (م+ا+لْ+لِ+ف)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ین) تالیف کوونکے ، جمع کوونکے ، د مختلفو کتابونو په امداد نوے کتاب لیکونکے۔

**مؤلفه**:- (م+ا+لْ+لَ+فَ)(عپ ، تر ،اس ، مو ،ج ـــ ات) د ,,مؤلف،، تانیث دے ۔ (خج په,,ف،، دے۔

**مؤلفه** :- (مُ+ا+لْ+لِ+ف)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ انې) د ,,مؤلف،، تانیث دے۔ (خج په,,ل،، دے۔

**مولګ ځکی** :- (مو+ل+ګ+س/ځ+ک+ی)(پ تر، اس ، مو) مالګه څکونکے ، مجازاً : لُور۔

**مولګه** :- (مو+ل+ګ)(اس ، مع) د ,,مالګه،، بدل شکل دے۔

**مؤلم** :- (مُ+ء+ل+م)(ع ، صف ، مو ـــ ه) الم رسوونکے ، تکلیف رسوونکے ، تکلیف ده۔

**مولود** :- (مو+لو+د)(ع ، اس ،مف ،مذ ،مو ـــ ه) پېدا شوے ، زېږېدلے ماشوم۔ د پېداوښت ورځ ، هلک ، زوے۔

**ـــ خوان** :- (ـــ خ+وا+ن)(عف تر ،اس ، مذ ، ج ـــ ان،مو ـــ ه) هغه سړے څوک چې په خاص دستوره کښې د حضور پاک صلي الله علیه وسلم د پېداوښت حالات بیانوي۔

**ـــ شریف** :- (ـــ ش+ري+ف)(عپ ، تر ،اس ، مذ) د حضور پاک صلي الله علیه وسلم د پېداوښت د حالات د بیانولو دپاره مجلس محفل میلاد ، عید مولود۔

**ـــ مسعود**:- (ـــ م+س+عو+د)(عف،تر،اس) نېک بخته بچے ، بختور ماشوم۔

**مولودیت**:- (مو+لو+دي+ي+ت)(ع ، اس، مذ) پېداوښت ، پیدا کېدنه۔

**مولوي** :- (مو+ل/ل+وي)(ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ان) د مولائي روم د معتقد درویشانو یو ورګړے۔ عالم ، مُلا ، مولانا ۔

**موله** :- (مو+ل)(اس ، مع) یو قسم زهرناکه ګیاه ده چې څاروي په خوړلو

مخې سره مړۀ شي.

**مولئ**:- (مو + ل + ئ)(اس ، مو) ملی ، مشهوره ترکاري ، د خوراک څيز چې په زمکه کښې دننه پيدا کېږي او پاڼې ئې د زمکې نه باهر وي.

**ـــــ تېپر** :- (ـــــ تې + پ + ر )( پ تر ، اس ، ج) دواړه مشهور سبزيانې دي. مجازاً : غېر اهم خلق ، ناڅيزه وګړي.

**ـــــ ګاڼرې** :- (ـــــ ګا + (ډ) ز + رې) مولی تېپر ، ارزان بيعه څيز ، عام خرڅېدونکے څيز ، معمولي څيز . (ذات څۀ مولی کاڼرې نۀ دي چې څوک ئې خرڅوي) . (متل).

**مولي خېل** :- (مو+لا+ خې + ل )(اس ، مع ) د شړي خېلو څانګه ده . (شړي خېل ، قاسم خېل، چهارخېل، شمن خېل) محسود دي.

**مولي کېول** :- ( مو + لي + ک + يو + ل )( انګ،اس،مذ ،ج ـــ ونه) ذره ، د وړې نه وړه ذره .

**مولے**:- (مو +لے)(اس،مذ ، ج ــــ لي ) هغه اوږد شان کاڼے چې مالګه مصالحې پرې ټکوي . (مذاقاً يا حقارتاً) هغه سړے چې هېڅ کار نۀ کوي .او خوراک ته نېغ ناست وي. (بازاري) د سړي اله تناسل.

**نېغ ــــ کښېناستل** :- د مولي په شان (دخوراک وغېره دپاره) نېغ کښېناستل.

**موم** :- (مو + م )(ف، اس جم ) هغه نرمه ماده چې د شهدو د بچو د ګبين نه حاصلېږي.ددې نه شمعې او نور څيزونه جوړولے شي.

**ـــــ باتي** :- (ـــــ با + تي )( ف تر ،اس ، مو ) شمع.

**ـــــ جامه** :- (ـــــ جا + م )( ف تر ،اس،مو ج ــــ مې) هغه کپړه چې موم پرې مبنلے شوے وي. (په داسې کپړه اوبۀ اثر نۀ کوي).

**ـــــ دل** :- د نرم زړۀ خاوند ، رحمدل.

سنګدلان به موم دلان نشي حميده

که د اور شغلې دې ځي له نصيحته (حميد)

**ـــــ کېدل** :- نرم کېدل ، نرمېدل.

**ـــــ ګر** :- (ـــــ ګ + ر )( ف تر ،اس، مذ ،ج ــ ان / موــه) هغه سړے چې د مومو نه مختلف قسمه څيزونه جوړوي. موم جوړوونکے.

**مومدي** :- (مو +م +د + دي )(اس ، مع) دزيرکيو څانګه ده. (زيرکي ، ملي زاد ) دوړدي.

**مومړ** :-(مو + م + ړ )(اس ، مذ ) هغه خاص موميانې دارو چې په مړي پورې مړي

**مومړ** :- (مو + م + ړ )(و ــــ موميائي ).

**مومل** :- (مو+م + ل)( مص) موندل ،ميندل،حاصلول.

**موملائي** :- (مو + م + لا+ ئي )(و ــــ موميائي ).

**مومن** :- ( م +(ؤ) م/ مي +ن)( ع ، اس،مذ ، ج ــ ان) ايمان راوړونکے ، ايمان لرونکے ، مسلمان.دخداے پاک يو صفاتي نوم.د نارينهؤ په نومونو کښې راځي.

**مومنانه** :-(مو + م/ مي + نا + نه )(عف، تر، تف) د مومن په انداز ، دمومن په شان.

**ـــــ مسلمان** :- (ـــــ م/ مو + س + ل +ما+ن)(ع پ تر، اس، ج ـــــ ان ـــــ ان) د دواړو لفظونو يوه معنٰی ده .دريم لفظ د تاکيد دپاره راوستے شي . مسلمان، ښۀ مسلمان يا ښۀ مومن.

**مومنه** :- (مُ /مو+مِ/ مي+ نَ)( ع پ تر، اس ، مو ، ج ـــ انې / ات) د,,مومن،، تانيث دے.

**مومن خېل** :- (مو + م / مي + ن + خې +ل )(اس ، مع ) د شېرخېلو څانګه ده . (شېرخېل ، هېبتخېل ، ناناخېل ، بهلول زي) محسود دي.

**مومن خېل** :- (ددغه)(اس،مع ) د منظرخېلو څانګه ده. (منظرخېل،عزيز خېل ، نظر خېل، ايمل خېل ، بهلول زي) محسود دي.

**مومند** :- (مو+م + ن + د )(اس ، مع) د پښتنو يوه لويه قبيله ده . عموماً مهمند ليکلے شي.( ,,مومند،، نوې املا ده) .

**مومي** :-( مو + مي )( فعل ) د ,,مومل،، مصدر نه / څخه د حال دفعل د غائب صيغه.

**مومي** :-( مو+مي)( فپ ، صف) موم سره تعلق لرونکے، مومو ته منسوب. موم واله ، هغه پړه چې موم پرې مبنلے شوے وي.

**ـــــ اليه** :- (ـــــ اي + لې + ه )( ع تر ،اس،مذ) چاته چې اشاره شوې وي.

**ـــــ لته** :- (ـــــ ل+تَ)(اس،مو ) د يو قسم پخواني ټوکې (کپړې) نوم.

**موميا**:- ( مو+ م+يا)( ف،اس ،مو ) هغه لاس (مړے ) چې د مسالو داروګانو په ذريعه اوچ کړي شوے وي.ممي.د مړو د محفوظ کولو مساله.

**موميائي** :- ( مو+م + يا +ئي )( اس ،صف ) موميا سره تعلق لرونکے ، موميا ته منسوب.

**موميائي** :- (مو + م +يا + ئي )( ف،اس، مو ) يو قسم د مومو په شان نرم دارو دي چې د زخمونو او ماتو هډوکو د رغولو دپاره پکارولے شي.

که دې زړۀ وي چې دا خوږ خاطر مې روغ شي

د لبانو مچه راکړه موميائي ده (خوشحال)

چې پرې ووزي ځوک له پاڼه موميائي ورلره بويه (پخواني کتابونو کښې ددې د جوړولو په حقله ډېرې عجيبه عجيبه خبرې ليکلې دي.خو ټولې بې اعتباره دي).

**ـــــ جسد** :- (ـــــ ج + س+ د )(عف ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه مړے چې د وچه ولو دپاره خاص قسم داروګان ورلګولے شوي وي.ممي.

**ـــ کول** :- مړے په خاص قسم دارو سره محفوظ کول،ممي جوړول.

**ـــــ کېدل** :- د مړي په خاص قسم دارو سره محفوظ کېدل و ممي جوړېدل.

**مؤنث** :- ( م +ا + نْ + نَ+ ث )( ع ، صف ، مو، ج ـــ انې / ات ) ماده، ښځه ، (د,,مذکر،، ضد ) په پښتو کښې عموماً د ذکرد صفت په طور استعمالېږي.او د جمع واحد دواړو دپاره راځي. لکه :مؤنث نوم ، مؤنث نومونه.

**ـــــ توب** :- (ـــــ تو + ب )( عپ تر ،اس ، مذ ) مؤنث والے، ښځه والے، ماده والے.

**ـــــ والے** :- (ـــــ وا+ لے )( عپ تر،اس، مذ )(و ـــ مؤنث توب).

**مؤنثه** :- (م+ ا +نْ+ نَ +سَ)( صف ،مو،ج ـــ ثې / انې) د ,,مؤنث،، مزيد تانيث دے. لکه: مؤنثه کلمه ، مؤنثې کلمې.

**مونج** :- ( مو + ن + ج )(اس ،جم ) يوقسم واښۀ دي چې پړي ترې جوړولے شي.

**مونجي** :- ( مو + ن + جي )(اس، جم) د غنمو يوقسم دے.

**مونجۍ** :- (مو +ن + ج+ۍ )( اس،مو ) د ,,مونجے،، تانيث دے.

**مونجے** :-( مو+ن +جے)( تابع، مهمل ، ج ــــ جي) د ګنجے تابع مهمل دے او د ,,ګنجے،، په معنٰی کښې زور پيدا کوي.يعني ګنجے منجے.

**مونځے** :- (مو +ن +ځَے )(اس، مذ ، ج ـــ جي) هغه چې پوزه ئې پرېکړې شوې وي يا ډېره چيته وي.چيت پوزے.(خج په ,,جے،، باندې دے).

**مونځے** :-( مو + ن + جے)(صف ، مذ ، ج ــ جي) ګونځې شوے ، ګرنځے ، عموماً ګنجے سره راځي. لکه: ګرونجے مونجے.(خج په ,,مو،، باندې دے).

**ـــــ کول** :- پوزه چاله پرېکول.

**ـــــ کول**:- ګرونجے کول ،ګونځې کول.

**ـــــ کېدل** :- د چا پوزه پرې کړے کېدل. چيت پوزے کېدل.

**ـــــ کېدل**:- ګرونجے کېدل ، ګونځې کېدل.

**مونځ** :- (مو + ن +(د) ز )( اس،مو،ج ـــ ونه) نمونځ.نماز.

**ـــــ اودس** :- (ـــــ او+_د+ س)(پ تر، اس ، مذ ) نمونځ اواودس کونه ، نماز

او وضو . مجازاً : د خدا ے پاک عبادت ، يا نمونځ گذاري.

**ـــ کول** :- نمونځ گذارل ، نمازادا کول.

**ـــ گذار** :- (ـــ گ / گو ، ذا ، ر) (پ ف، تر، صف ، موـــه) نمونځ (باقاعده) کوونکے.

**ـــ گذاري** :- (ـــ گ / گو + ذا + ري) (پ ف ، تر ،اس، مو) د نمونځ ادا کونه ، نماز گذاري.

**خپل ـــ کول** :- مجازاً : عبادت کول ، په عبادت کښې مشغول اوسېدل . خدا ے يادول

**مون خېل** :- (مو+ن+ خې + ل) (اس ، مع) د ملک رينيو ځانگه ده . (ملک د بينۍ ، منزۍ ، علي زۍ) محسود دي.

**موندرۍ** :- (مو + ن + د + ر + ۍ) (اس ، مو) والۍ ، د غوږونو يو کالے (پسول) چې د وږي شان حلقې په شان وي . (هند) گوته ، انگشتري.

**موندرۍ** :- (مو + ن + د + ر + ۍ) د ,, مندرے ،، تانيث دے . مندرۍ.

**موندرے** :- (مو+ن+ د + رے) (صف ، مذ ، ج ـــ ري) مندرے ، چيت قدرے ، هغه چې قد ئې لنډ وي.

**موندل** :- (مو+ن+ د + ل) (مص) ميندل ، (ورک شوے څيز) ليدل او حاصلول ، څۀ څيز غېر متوقع طور سره ليدل او حاصلول . (ف : يافتن).

**موندلے** :- (مو+ن+د + لے) (اس ، مو، ج ـــ لي) څۀ څيز ليدلے او حاصل شوے ، يافته

**موندنه** :- (مو +ن+ د + ن) (حمص) د ورک شوي څيز ليدنه حاصلونه . څۀ څيز غېر متوقع طور سره ليدنه او پورته کونه.

**موندونکے** :- (مو +ن+ دو+ن + کے) (اس،فا، مذ، ج ـــ کي) حاصلوونکے ، ورک شوي څيز ليدونکے او اخيستونکے.

**موندونے** :- (مو +ن+ دو + نے) (پ تر ،اس ، مذ ، ج ـــ ني) هغه ماشوم چې موندلے شوے وي . يعني چې مور او پلار ئې معلوم نۀ وي . مجازاً : حرامي . څۀ څيز خلاف توقع ليدے او واخستے شي . موندونکے.

**موندۀ** :- (مو + ن+ د) (و ـــ موندنه).

**ـــ دخبرې** :- د خبرې اصل مطلب ته رسېدنه.

د خوشحال په ويل غوږ او فکر بويه
چې موندنه د خبـــرې پـــه امضا ده (خوشحال)

**ـــ کېدل** :- (د ورک شوي څيز) ليدل او حاصلول.

پښتو ژبه مشکله ده چې بحر موندے نشي
هم مالره يو څو بحره په ډېر منبود راغلي (خوشحال)

**موندے** :- (مو + ن + دے) د ,,موندلے ،، بدل شکل چې په فعلونو کښې استعماليږي . لکه : که دا څيز موندے شوے !

**موندے** :- (مو + ن+د + ے) (اس ، مذ ، جـــ دي / ان) هغه گډ چې غوږونه ئې ځائي وارۀ وارۀ وي . ووړ غوږے گډ . هغه حېوان چې لکۍ ئې پرېکړې شوې وي ، هغه حېوان چې ښکر ئې مات شوے وي.

**مونډ** :- (مو + ن + ډ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ان) وېخ ، جره بنياد ، اصل.

**مونډ** :- (مو+ن + ډ) پل ، قدم ، لار ، تعليم.

د چنار يادو دوستي فرض ده په مومنانو چې
دوستدار ئـــې د رســول د مـــونډ پېـــرو دي (مخزن)

**ـــ اباسل / وباسل / وېستل / اوښکل** :- جره وښکا ، بېخ و ښکل . بېخي ورکول ، نابوده کول . تباه کول ، بربادول ، هلاکول.

**ـــ ختل** :- (و ـــ مونډ وتل).

**ـــ دې ووزه** :- (جمله) د ښېرې جمله ده . تباه شې ، هلاک شې.

**ـــ وتل** :- جره وتل ، وېخ وتل . بېخ ورکېدل ، بالکل فنا کېدل . نابود کېدل.

هلاکېدل ، تباه کېدل ، ډېر زيات نقصان يا تاوان ور رسېدل.

**ـــ وتلے** :- (ـــ و + ت + لے) (پ تر ،اس ، مذ ، ج ـــ لي) هغه چې وېخ ئې وتے وي . مجازاً : تباه شوے ، برباد شوے.

**مونډا خېل** :- (مو +ن+ ډا+ خې + ل) (اس،مع) د کيکرئيو ځانگه ده . (کيکرۍ، ناناخېل، بهلول زي) محسود دي.

**مونډکي** :- (مو+ن+ډ +کي) (اس،مو) ترينکلي ، ترينگړې ، پرانښن.

**مونډوت** :- (مو +ن+ډو + ت) (پ تر ، صف، مذ ، موـــه) مونډ وتے ، بېخ ايستلے

صبر کښت باردار وو ستا کړو وروځو مونډوت کړ
کښت نـــۀ لـــري زور پـــائداري د تيرۀ داس ته (حافظ)

په مونډ پرېکړے ، مونډان کړے.

**مونډۀ** :- (مو + ن + ډ) د ,, مونډه ،، بدل شکل چې ځينو مغيره ؤ تورو سره راځي.

**مونډه** :- (مو + ن + ډ) (اس،مو، ج ـــ ډې) منډه ، دو ، زغل.

**مونډه** :- (مو+ ن+ډ) (اس، مو، ج ـــ ډې) د چرگ د پښې / ښپې وېښن ، د ونې وېخ ، د ونې تنه چې پانې ښاخونه وغېره نۀ لري . ورو کے ازغے / اغزے . د يو ځا ے نوم.

**بې ـــ** :- (بې ـــ) (پ تر ، صف) هغه چې مونډ ئې نۀ وي . بې وېخه . مجازاً : هغه سړے چې په شا ئې څوک مددگار يا مرسته کوونکے نۀ وي . پرديسي ، د بل وطن سړے.

**د ـــ وښکل / وباسل** :- ونه يا بوټي سره د وېخه اوباسل . چې دوباره ونۀ ټوکېږي . مجازاً : تباه کول ، بېخي ورکول.

**مونډهرے** :- (مو + ن + ډ / ډَ + هـ + رے) (اس ، مذ ، ج ـــ ري) هغه زمکه يا ځا ے چې د ټوپونو وهلو د پاره نرمه وي.

**مونډي** :- (مو + ن +ډي) (پ تر ،اس، مذ، ج ـــ ان) مونډ لرونکے ، هغه چې وېخ لري . مضبوطي جړې واله ، مونډيز.

**ځان ـــ کول** :- مجازاً : ځان مضبوطول ، استحکام پيدا کول.

**مونډۍ** :- (مو + ن+ ډ + ۍ) (اس، مو) د ,, مونډے ،، تانيث دے.

**مونډۍ** :- (مو + ن+ ډ + ۍ) (اس ، مو) يو قسم لوبه ده چې يو لرگے په دائره کښې کښېږدي او په بل لرگي ئې وهي چې د دائرې د ليکې نه ئې باهر وکاږي . ډوکرے ، ډوگان.

**مونډۍ** :- (مو +ن+ ډ+ ۍ) (اس ،مو) هغې ونې ته وائي چې تش مونډ ئې ولاړ وي ښاخونه پانې وغېره پرې نۀ وي.

**مونډيز** :- (مو+ن + ډي +ز) (صف ، مذ ، موـــه) مونډ لرونکے ، وېخ واله مجازاً : قام قبيله لرونکے ، مضبوط ، طاقت واله ، پشتي واله.

**مونډے** :- (مو + ن +ډ ے) (اس، مذ) هغه غوبې چې د غوبل په وخت د مرکز طرف ته تړلے وي . د مېنځ غوبې.

**مونډے** :- (مو +ن +ډ ے) (اس، مذ ، ج ـــ ان) هغه سړے چې لاس ئې پرېکړے شوے يا بېکاره وي . يو لاسے . هغه ځناور چې لکۍ او غوږونه ئې پرېکړي وي . هر لنډ څيز.

**مونړل** :- (مو + ن + ړ + ل) [مو+ن+ړل] (مص) فخر کول ، وياړل.

څو تجربه نۀ کړي خپل زويه ورونړه
هـــومـــره د ديـــو پـــه کـــار مه مونړه (خوشحال)

**مونږي** :- (مو + ن +ږي) [مو+نږي] (هـ ،اس ، مو) موړي ، سرمايه ، پنگه.

**مونږۍ** :- (مو + ن+ ږ + يې) [مو+نږ+ۍ] (اس ،مو) د چيـرړو ختو غونډسکې شان چې د تالاؤ وغېره د اوبو د تلو سوړے پرې بندولے شي . موږه.

**مونږ** :- (مو+ن +گ / ژ) (ضمير) د جمع متکلم ضمير دے . مونگ ، موږ.

**مونږه** :- (مو + ن + گ / ژَ) د ,, مونږ ،، بدل شکل دے . مونگ، موږ.

**مونس** :-(مو+ نْ+ س)(ع ،صف ،مذ ، مو ـــ ه) اُنس لرونکے ، دوست، يار ، ملګرے،انيس۔

**مون سون**:- (مو+نْ+سو+نْ)(انګ تر ،اس ، مذ ) په خاص موسم کښې په يو طرف چلېدونکي بادونه۔

**د ـــ بادونه** :- (د ـــ با + دو+ ن )(انګ،تر،اس، ج)هغه خاص بادونه چې د سمندر دلوري اوچې ته راځي او د اوبو ډکې وريځې ځان سره راولي ۔د بارانونو راوستونکي بادونه۔

**مونګ** :- (مو + ن + ګ)(اس ، جم) مئين ،غله چې د دالو په شان پخولے شي۔ او وريجو سره ګډولو سره کيچړے جوړولے شي۔

**مونګ پلي** :- (مو+ن+ګ+ پ + لي)(ه، اس ،جم) يوقسم پلي دي -چې دوه يادرې غټې دانې لري۔خوړې شي او تېل ترې ايستے شي۔ تش ,, پلي ،، هم ورته وائي۔

**ـــــ پلو** :- (ـــ پ +لو) د مونګ پلي (ج) بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي

**د ـــ پلوتېل** :- (د ـــ تې+ ل )(پ تر ، اس ، جم ) هغه تېل چې دمونګ پلو نه ووزي۔ عموماً د غوړو په ځاے استعمالېږي۔

**مونو ـــ** :- (مو+ نو ـــ)(انګ سابقه) د انګريزي سابقه ده ۔د يوې يوستوې معنٰى ورکوي۔

**مونو سېلابل** :- (مو+نو+ سې + لا+ ب +ل)(انګتر ، صف ) هغه لفظ چې د يو سېلاب نه/ ځخه جوړېږي۔يو سېلابي،يو سېلابيز ، يوهجائي۔

**ـــ ګراف** :- (ـــــ ګ+ را + ف )(انګ، تر،اس، مذ ،ج ـــ ونه) هم د يوې خبرې بيان۔د يو مخصوص مضمون رساله يا مقاله۔

**ـــــ ګرافي** :- (ـــــ ګ + را+ في )(انګ ،تر ،اس ،مو ) د يوې خبرې بيان کونه۔ ديو موضوع مضمون يامقاله وغېره ليکنه۔

**مونو ګرام** :- (مو+نو + ګ +را+م)(انګ،تر،اس ،مذ ،ج ـــ ونه) د يو څوحرفونو (تورو) په ښکلي ډول سره يو ځاے ليکلے شوے شکل۔عموماً د چا د نوم اولني تورے په داسې ښکلي شکل کښې د نښان يا علامت په طور يو ځاے کولے شي

**مونې**:- (مو + ن + ئ)(اس ، مو ) دپټنوس پوش حاشيه،جالر، پيرلے شوے هار

**مونے** :- (مو + نے )(اس ،مذ ،ج ـــ ان) پرهېزګاره،شېخ ، زاهد ۔

**مونے**:- (مو +نے )(اس ،مذ ،ج ـــ نې) هغه تير چې اوچې کړې غوښې (لانډې) پرې زوړندولے شي۔

**مونے**:- (مو +نے)(اس،مذ ،ج ـــ نې) بې ښکرو چېلے ، بې ښکرو بيز۔

**مونے** :- (مو +نے )(اس،مذ ،ج ـــ نې) حمائل ، هار۔

**موومنټ**:- (مـو + و + م + ن + ټ )(انګ ،اس ،مـذ ) تحريـک ، دکوم مقصـد دپاره داولس راپورته کېدنه۔

**موهب**:- (مو +هـ+ب)(ع،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) خېرات، بخشش،ورکړۀ۔

**موهب** :- (مو + هـ+ب )(ع ، اس ،مذ ، ج ـــ ان) ورکوونکے ، وربخښونکے ، عطا کوونکے۔

**موهبت**:-(مو +هـ+ ب +ت )(ع ، اس،مذ ،ج ـونه / ات / مواهب) ورکړۀ ، بخښنه، بخشش ، عطا

**موهبه** :- (مو + هـ + ب ) (اس مو ، ج ـــ بې / ات ) د ,, موهب ،، تانيث دے۔

**موهـل خېـل** :- (مـو + هـ +ل + خـې +ل)(اس،مـع ) د شېخۍ څانګـه ده ۔ (شېخۍ،انائي،بدی ،زخاخېل) افريدي دي۔

**موهمن زئ** :- (مو+هـ +م+ن+ ز+ئ)(اس،مع ) د پيرزئ څانګه ده ،زرکون دي۔

**موهن خېل** :- (مو + هـ ، ن+ خې + ل )(اس، مع) د ,,ناصر ،، څانګه ده ۔غلزي دي

**موهوب** :- (مو +هو + ب )(ع ،اس، مف ،مذ ،مو ـــ ه) عطا کړے شوے ، ورکړے شوے۔

**ـــ اليه** :- (ـــ اي+لي+ه )(ع،تر، اس) چاته چې کوم څيز ,,هبه ،، شوے وي ، چاته چې کوم څيز ورکړے شوے وي۔

**ـــــ له** :- (ـــــ(ب+ ن ) ل +ه)(ع ،تر،اس) د چا دپاره چې هبه شوے وي۔

**موهوم** :- (مو+هو +م )(ع ،اس،مف ،مذ ، مو ـــ ه) وهم کړے شوے ، وهمي ، خيالي ، فرضي۔

**ـــ پرست** :- (ـــ پ+ ر + س + ت )(عف ، تر،اس،مذ ، ج ـــ ان ) هغه سړے چې وهم پسې ځي ، وهمي ۔

**ـــ پرسته**: (ـــ پ + ر + س + ت )(عف ،تر،اس ، مو ، ج ـ تې) د ,, موهوم پرست،، تانيث دے۔وهمي ښځه۔

**ـــ پرستي** :- (ـــ پ +ر+س+ تي )(عف،تر،اس ،مو) دوهم پرستش کونه ، وهم پسې تلنه ، وهمي توب۔

**موهومات** :- (مو + هو + ما + ت )(ع ، اس ، مو ، ج )د ,,موهومه ،، جمع ده ۔ وهمي څيزونه، خيالي څيزونه ،چې حقيقت نۀ لري۔وهمونه ۔

**موي** :- (مو +ي )(ف ، اس ) مُو ، ويښتۀ۔

**موے** :- (مُو + ے )(ف،اس ،مذ ) ويښتۀ۔

**مويب خېل** :- (مو +ي + ب + خې + ل )(اس ، مع ) د سرمست خېلو څانګه ده۔ سرمست خېل ، ديروونې ، ووزني خېل،مهمت خېل، اتمانزئ ، درويش خېل) وزير دي۔

**مؤيد**:- (مو+ا + ي +يَ +د)(ع،اس،مذ ،مو ـــ ه) تائيد کړے شوے ،هغه خبره وغېره چې تائيد ئې شوے وي۔بريالے ، فتحياب۔

**مؤيد** :- (م + ا+ئ+ي + د ) (اس،مذ ،ج ـــ ان / ين) تائيد کوونکے ،مرسته کوونکے ،مرستيال ، قوت ورکوونکے ۔

**مؤيده** :- (مُ+ا + ي + يِ +د )(ع ، اس ، مو، ج ـــ دې / انې ) د ,, مويد ،، تانيث دے

**مويز** :- (م+وي +ز )(ع ،اس ، جم ) اوچ کړې انګور ، منقٰى۔

**سرۀ ـــ** :- (س + ر ـــ )(عپ ، تر ،اس ، جم ) هغه مويز چې د سرو انګورانو نه جوړ شوي وي۔سور رنګي مويز۔

**مويسه** :-(م+وي + س )(و ـــ مويښه )۔

**مويسي** :- (م + وے+ سي )(اس،مذ ،ج ـــ ان ) عادتي کوني۔

**مويښه** :- (م+وي +خ/ ش )(اس،مو،ج ـــ ښې ) د بواسيرغوټې۔

**موېښې** :- (مو + وے + خي / شي )(اس ، مو ) بوا سير، باوسير، مشهور مرض۔

ځو څيز په ميراث دي زۀ ئې وايم له کتابه
زحمت د مويښۍ بوئي د تخرګ قلتباني (خوشحال)

**مه وه** :-

**مه وے** :- (جمله) خداے دې نۀ کړي ، نۀ دې وي۔

که سود ئې نۀ رسي په دا دنيا کښې
ژوندون ئې مه وه عمر ئې خوار دے (حميد)

**مه** :- (ما )(ضمير ) د متکلم د ضمير ,, مے ،، بدل شکل دے ۔ لکه : ببرک مه ډېر خوښ دے ، ما ، مے۔

سپنې خولې چينجي به ولې
نازک غوښتې ورمه نۀ کړې (غاړه)

**مـه** :- (م + ه )(ف ، صف ) لوے، مشر ، بزرګ ، سردار ۔ (په پښتو کښې عموماً په مرکباتو کښې استعمالېږي )۔

**مـه** :- (مَ + ه )(ف ،اس ) د ,,ماه ،، مخفف دے ۔مياشت ، سپوږمۍ ( عموماً د فارسۍ په مرکباتو کښې استعمالېږي ۔چې په پښتو کښې

هم مستعمل دي)

**ـــ پاره** :- (ـــ پا + ر)(ف تر، صف،مو، ج ـــ ري) د سپوږمۍ ټوټه ، ډېر زيات ښکلے، معشوقه،محبوب، د زنانهؤ په نومونو کښې راځي۔

**ـــ تمام** :- د څوارلسمې سپوږمۍ، مجازاً : ډېر زيات ښکلے۔

د جنت جونې خوش بالې خوش جمالې
ستــاد مــخ د مه تمــام پــه تمنا وې (حافظ)

**ـــ جبين** :- (ـــ ج+ بي +ن)(ف تر، صف،مذ، مو ـــ ه) د سپوږمۍ په شان تندے لرونکے مجازاً : ډېر زيات ښکلے۔ معشوقه ، محبوب ، د زنانهؤ په نومونو په طور استعمالېږي۔

**ـــ رو** :- (ـــ رو)(ف تر، صف،مذ، ج ـــ ان)(و ـــ مه لقا)۔

**ـــ طلعت** :- (ط + ل +ع +ت)(عف تر صف ، مذ، مو ـــ ه) دسپوږمۍ په شان ښکلے ، ښکلے ، ښائسته۔ معشوقه، محبوب ، د زنانهؤ په نومونو کښې راځي۔

**ـــ لقا** :- (ـــ ل +قا)(عف، صف) د سپوږمۍ په شان مخ لرونکے ، سپوږمۍ مخے،ډېر زيات ښائسته ډېر ښکلے۔ معشوقه،محبوب۔

**ـــ وش** :- (ـــ و + ش)(ف تر، صف،مذ ،ج ـــ ان) د سپوږمۍ هسې ، د سپوږمۍ په شان ډېر زيات ښکلے۔معشوقه، محبوب۔

**ـــ وشه** :- (ـــ و+ ش)(ف تر،صف،مو،ج ـــ شې / انې) د ,,مه وش،، تانيث دے۔

**مهابت** :- (م+ها +ب +ت)(ع ، اس ، مذ) هيبت ، ويره، خوف،رعب، شان شوکت۔دنارينهؤ په نومونو کښې راځي۔

**مهاجر** :- (م + ها + ج + ر)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / ين) هجرت کوونکے، يو ځاے پرېښولو نه پس په بل ځاے کښې استوګن کېدونکے۔د يوملک نه بل ملک ته کډه کوونکے ، ترک وطن کوونکے۔

**ـــ مرغان** :- (ـــ م+ ر + غا + ن)۔

**ـــ مارغان** :- (ـــ ما + ر ـــ)(عپ تر،اس،جم) هغه مارغان چې په خاص خاص موسمونو کښې د يو ملک نه بل ملک ته ځي او په خاص وخت بيرته راستنېږي۔

**مهاجرت** :- (م+ها + ج + ر + ت)(ع،اس،مذ) هجرت کونه، هجرت ، د يو ملک نه بل ملک ته کډه کونه ، ترک وطن ، وطن پرېښودنه۔

**ـــ کول** :- هجرت کول ،د يوملک نه بل ملک ته کډه کول ،ترک وطن کول۔

**مهاجره** :- (م+ ها+ ج + رَ)(ع ،اس،مو،ج ـــ ي) د مهاجر مؤنث دے۔

**مهاجري** :- (م+ها + ج + ري)(ع،اس،مو، ج) د ,,مهاجره ،، جمع ده۔

**مهاجرين** :- (م+ها + ج + ري + ن) د ,, مهاجر،، جمع ده ۔ هغه خلق چا چې د حضور پاک صلي الله عليه وسلم په حکم او اجازت د مکې نه اول دحبشې ملک ته او بيا مدينې منورې ته هجرت کړے وو۔

**مهاجم** :- (م + ها+ ج + م)(ع ،اس ، مذ ،ج ـــ ان) هجوم راوړونکے، هجوم جوړوونکے۔

**مهاجمه** :- (م+ها + ج + مَ)(ع،اس، مو، ج ـــ مې) هجوم راوړل ، حمله کول ، په جمع ورغورزېدل۔

**مهار** :- (مَ/ مُ/ مُو + ها + ر)(ف ، اس،مذ ،ج ـــ ونه) هغه ورو کے شان لرګے ، کوم چې د اوښ په پوزه کښې اچوي۔دې سره اوږد پړے تړلے کېږي۔ (په فارسۍ کښې د ميم زور سره وئيلے کېږي او د ميم پېښ سره لوستنه ئې درسته نۀ ګڼلے کېږي۔خو په پښتو کښې د ميم پېښ بلکې د پښتو خاص پېښ سره وئيلے کېږي۔

**ـــ کول** :- اوښ ته مهار ور اچول۔مجازاً: په قابو کښې راوستل۔د حکم لاندې کول۔

**بې ـــ** :- (بې ـــ)(ف تر، صف) هغه اوښ چې مهار نۀ لري۔ مجازاً: ازاد سړے ، هغه سړے چې هېڅ پابندي پرې نۀ وي۔خوشے ، بې واګو۔

**مهارت** :- (م +ها + ر + ت)(ع،اس،مذ ،ج ـــ ونه) مشق ، کسرت ، لياقت ، قابليت ،کاريګري ، په کار کښې د کمال ښودنه۔استاذي ، په کار کښې مړتتوب ، هنرمندي۔

**ـــ پيدا کول** :- مشق او بيا بيا کولو سره په يو کار يا هنر کښې چابکدستي او کمال پيدا کول ، استعداد پيدا کول۔

**ـــ لرل** :- په کوم کار کښې استاذي ، هنرمندي يا چابکدستي لرل۔په کوم کار کښې کمال ،مړتتوب لرل ، استعداد لرل۔

**مهاري** :- (م + ها + ري)(ف ،اس) هغه اوښ چې په تګ کښې ګړندے وي۔ مهار

**مهال** :- (م+ها +ل)(اس،ظر،مذ ، ج ـــ ونه) وخت ، موقع ، محل (په استعمال کښې عموماً ,,مال ،، استعمالېږي)۔

**سحر ـــ** :- (س + ح + ر ـــ)(پ تر،اس ،ظر) د سحر وخت ، دسحر په وخت ۔

**مابنام ـــ** :- (ما +خا/ شا + م ـــ)(پ تر،اس،ظر) د مابنام په وخت۔

**مُهان** :- سپک ، خوار۔

**مهانګے** :- (م + ها + ن+ړ + ګے)[م+ها+ن+ګے](اس،مذ ،ج ـــ ګي / ان) د ,,مهانې ،، تصغير دے ۔ کشتي وان، بيړۍ چلوونکے ۔(عام استعمال کښې ,,مانګے ،، وئيلے شي)۔

**مهانے** :- (م + ها + ن + ړے)[م+ها+نړے](اس،مذ ،ج ـــ ړي) مانګے،کشتي وان ، بيړۍ وال۔

**مهتاب** :- (م + هـ + تا + ب)(ف،اس،مذ) سپوږمۍ ،ماه ۔ د سپوږمۍ رڼا (اصلاً دا لفظ ,تاب مه ،، (د سپوږمۍ زلق) وو ۔د مقلوب کېدلو نه پس ,, مه تاب،، شو) د زنانهؤ په نومونو کښې راځي خو وروستو ترې نه تانثي ,,ه،، هم لګولے شي۔يعني مهتابه) د نارينهؤ په نوم کښې راځي۔

**مهتابي** :- (م + ه + تا + بي)(ف تر، صف) د مهتاب (سپوږمۍ) سره تعلق لرونکے ،مهتاب ته منسوب ،د سپوږمۍ په شان (سپين يا روڼ)۔

**مهتابۍ** :- (م + هـ + تا + ب + ئ)(فت، اس،مو) يو قسم اتش بازي ده چې سپينه رڼا کوي۔

**مهتدي** :- (م+هـ + ت +دي)(ع ،اس ،مذ ، ج ـــ ان) هغه چې هدايت ئې موندلے وي ۔هدايت يافته ، په سمه لار شوے ۔ د نارينهؤ په نومونو کښې استعمالېږي۔

**مهتداے** :- (م +هـ +ت + دا)(ع ،اس ، مف) هغه چې هدايت ورکړے شوے وي۔

**مهتر** :- (م +ه+ت +ر)(ف ،اس ، صف ،ج ـــ ان) مشر ، لوے مشر، سردار ، پخوا د چترال د حکمران لقب وو ۔د خضر[۴] لقب۔

چې مدو ئې مهتر خضر دے خوشحاله
د هغــو بېــړۍ بـــه ورسي تـــر شطه (خوشحال)

چوهړے ، خاکروب (دا د پيرنګيانو د وخت يادګار ښکاري ۔چې د چترال د حکمران لقب ئې داسې سپک کړ ۔ښائي چې دا لفظ په دې دريمه معنٰی کښې) ترک کړے شي۔

**ـــ چترال** :- (ـــ چ + ت + را + ل)(اس،مع) د چترال د پخوانې رياست د حکمران لقب ، د چترال حکمران۔

**مهتر خېل** :- (م + هـ + ت + ر + خې + ل)(اس، مع) د محمد خېلو څانګه ده ۔ (محمد خېل،حسن خېل،مهمت خېل ،اتمان زئ ، درويش خېل) وزير دي۔

**مهترزئ** :- (م+ ه + ت + ر + ز + ئ)(اس،مع) دهارون خېلو څانګه ده ۔ (هارون

خېل، سناتيه ) کاکړ دي.

**مهتري** :- ( م +هـ + ت + ري )( ف ،اس ، مو ) غوره والے ، ښۀ والے ، سرداري، مشري ،لوئي.

**مهتمم** :- ( م +هـ ، ت + م +م )( ع، اس ، مذ ، ج ــــ ان ) اهتمام کوونکے ، انتظام کوونکے منيجر ، د يوې ادارې يا شعبې سربراه ،منيجر .د مال په محکمه کښې يوه عهده چې د ډپټي کمشنر نه لاندې ده.

**مهجور** :- ( م +هـ+ جو +ر )( ع ،اس ، مف ، مذ ، مو ــه ) پرېښودے شوے ، جدا کړے شوے ، د خپله يار ه جدا ، فراقجن.

**مهجوره** :- (م+هـ +جـو+ رَ )( ع پ تر ،اس،مو ، ج ـــ رې / انې ) د ,, مهجور ،، تانيث دے.

**مهجوري** :- (م +هـ+جو+ ري )( عف،تر ،اس،مو ) جدائي،فراق، بېلتون.

**مهد**:- ( م+ه +د )( ع،اس،م،ج ـــ ونه ) زانګو،ځانګو، ګهواره.

**د ـــ نه ترلحد پورې**:- د پيداوښت نه تر قبره پورې. مجازاً : درست عمر ، ټول عمر ، ټول ژوند .

**مهدي** :- ( م +هـ+ دي )( ع ،اس،مذ ،ج ـــ ان ) هدايت کړے شوے، هدايت يافته په سمه لار . د نارينه ؤ په نوم کښې راځي.

**مهدي** :- (م+ هـ+ دي )( اس ، مع ) د شيعه ګانو دولسم امام ، د چا په حقله چې دا عقيده ده چې د قيامت نه به لږ اګاهو راځي او هغه او حضرت عيسیٰ عليه السلام به په دجال او کافرانو برے مومي.

**مهر** :- (م+ه+ ر )( ف ،اس،مذ ) نمر، نور،لمر، نمېر، مېر (عموماً دفارسۍ د کتابونو په شکل کښې استعمالېږي ).

**مِهر** :- ( م +هـ + ر )( ف،اس، مذ ، ج ــــ ونه ) مينه، ښۀ سلوک، کرم، مهرباني.

**ـــ ژن**:-( ــــ ژ +ن)( فپ ،تر، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) مهر کوونکے ، مينه ناک ، مينه ور .

تل له ډېره خياله څو پېښې کړي له خوشحاله

هـــم روغه هم جنګ کړي مهر ژنه هم قاهره ( خوشحال )

**مهر** :- ( م+هـ+ ر )( ع،اس،مذ ،ج ـــ ونه ) هغه رقم کوم چې د نکاح په وخت نکاح کوونکے خپلې کېدونکې ښځې له د ورکولو لوظ وکړي .حق مهر، ولور .

**حق ـــ** :- ( ح + ق ـــ )( و ـــ مهر ).

**ـــ معجل** :- ( ـــ م+ ع + جْ + جَ+ ل )( عف، تر،اس، مذ ) هغه حق مهر چې دنکاح په وخت مخې سره هم ورکېدے شي.

**ـــ مؤجل** :- ( ـــ م+ا + جْ +جَ + ل )( عف،تر ،اس،مذ ) هغه حق مهر کوم چې د نکاح نه وروستوڅۀ وخت ورکول غواړي.

**مهر** :- ( مُ + هـ + ر )(اس،مذ ،ج ـــ ونه / ان ) اشرفۍ ،د سرو زرو سکه.

**مهـر** :- ( مُ + ه + ر )(ف،اس،مـذ ، ج ــــ ونـه ) ټاپـه، پـه ګوتـه يـا بـل کـوم فلز کنستلے شوے نوم وغېره .چې په لاک باندې د نښـان لګولو دپاره پکارولے شي.

**ـــــ دار** :- ( ــــ دا + ر )(ف تر ،اس،مـذ ، ج ـــ ان ) مهـر لـرونکے ، د پخوانـو بادشاهانو هغه ملازم چې ,, شاهي مهر ،، حفاظت به ئې په ذمه وو . مهر لرونکے ، هغه تيلۍ يا صندوق وغېره چې مهر سره بند کړے شوے وي.

**ــــ ساز** :- ( ـــ سا +ز )( ف تر ،اس،مذ ،ج ـــ ان ) هغه سړے چې دربړ وغېره مهرونه جوړوي.ټاپې جوړوونکے .

**ـــ سازي** :- ( ــــ سا + زي )( ف تر ،اس،مو ) مهرونه جوړونه ، د مهرونو د جوړولو کار يا هنر .

**ـــ کن** :- ( ـــ ک + ن ).

**ـــ کند** :- ( ـــ ک + ن +د )( پ تر ،اس،مذ ،ج ـــ ان ) مهـــر کنســـتونکے ، مهرونه جوړونکے .

**ـــ کندي** :- ( ـــ ک + ن + دي )( ف تر ،اس، مو ) د مهر کنستنه، کنستلو سره د مهرونو جوړونه.

**ـــ کندے**:-( ـــ ک +ن+ د ے)(و ـــ مهر کن ).

**ـــ کول** :- د کوم څيز د بندولو نه وروستو په لاک باندې خپل نښان ياټاپه لګول. بندول ، محفوظول.

**ـــ لګول** :- په لاک وغېره ټاپه يانښان لګول.

**سر به ـــ کول** :- د لفافې وغېره د بندولو نه پس پرې مهر لګول.

**سـر بـه ـــــ** :- ( س + ر + ب ـــــ )( ف تر ، صف ) پـه مهـر سـره کـوم څيـز بندشوے .هغه څيز چې د بندولو نه وروستو پرې مهر لګولے شوے وي . لکه : سر به مهر لفافه.

**ـــ دسکوت په خولۀوهل** :- خاموشه کېدل،چپ کېدل ، اواز يا غږ يا خبره نۀ کول

په درست عمر ئې مهر د سکوت په خولۀ وهلے

زماد زړۀ طوطي دے چې نن ګورمه ګويا شۀ ( خوشحال )

**ـــ وهل** :-( په خولۀ ) خاموشي اختيارول ، چپ پاتې کېدل،خاموشه کول، چپ کول

کــه پــه خولۀ مهر وهلے د عاشق دے

په سينه کښې ئې زړۀ ګوره څۀ شور کا ( خوشحال )

**ـــ ماتول** :- پـه کوم بنـد کړي څيـز باندې لګېدلے مهر مـاتول .مجازاً : د بندڅيز پرانستل.لکه : د خاموشۍ مهر ماتول.

**مهراني** :- ( م+هـ + را + ني )( اس، مع ) د وينچي ځانګه ده.سپين ترين دي.

**مهربان** :- (م+هـ+ ر+ با+ ن)( ف،اس، مذ ، ج ـــ ان ) مهرکـــوونکے ، مينـــه کوونکے ، مهرباني کوونکے ، ښۀ سلوک کوونکے .

**مهربانګي** :- (م+ هـ + ر + با + ن+ ګي )( و ـــ مهرباني ).

**مهربانه** :- ( م+هـ+ر+ با+نَ د ,,مهربان ،، بدل شکل دے.همدغه معنې لري. لکه : خداے ډېر مهربانه دے.

**مهربانـه** :- ( مِ + هـ +ر + بـا + نَ )( صف ، مـو ، ج ـــ نې / انې ) د ,, مهربـان ،، تانيث دے . لکه : بيګم صاحبه پرې ډېره مهربانه ده.

**مهرباني** :- ( م +هـ+ ر + با + ني )( ع،اس، مو ) مينه کونه ،مينه ، ښۀ سلوک ، کرم احسان.

**مهرباني** :-( م + هـ +ر + با+ ني )( جمله ) د جملې مخفف دے .يعني ستا ، مهرباني ده ، د چا د ښېګړې يا د نيکۍ په وخت د شکرېې په طور وئيلے شي.شکريه.

**ـــ کول** :- ښۀ سلوک کول، ښېګړه کول ،کرم کول.

**ـــ وکړه / وکه** :- ( ــــ و + ک + ړ / وُ+ک )( جملـه ) د چا نـه د کـوم خواست يا درخواست کولو په وخت وئيلے شي .يعني ستا بـه ډېره مهرباني وي کـه دا کار راله وکړې . ځينې وخت طنزاً هم وئيلے شي او مـراد تـرې حکـم ورکـول وي لکه : مهرباني وکړه خولۀ دې بنده کړه.

**مهرخان خېل** :-( م+هـ+ ر + خا+ ن + خې + ل)( اس، مع ) د بلې خېلو ځانګه ده . ( بلي خېل ، شادي خېل ، بورا خېل ، مهمت خېل ، اتمان زئ ،درويش خېل ) وزير دي.

**مهردين کور**:- ( م+ هظ + ر +دي+ن + کو + ر )( اس، مع ) د يار دل کورځانګه ده . ( يار دل کور، کډئ کور، حليم زئ ) مهمند دي.

**مهرک** :- ( م +هـ + ر + ک )( اس ، مع ) د بلوچستان د يو رومان هيروينه چې د عزت معشوقه ده.

**مهره** :- ( م+هـ +ر )( اس ،مو ،ج ــــ رې ) د شطرنج وغېره د لوبوګيټۍ ، د ملا

د تیر یوه غوټه. د تسپې (تسبیح) یوه دانه.

**مهره** :- مارجړی ، چې مار خوړلے پرې رغېږي.

هــم مهره لري هم زهر
ښۀ مردان وي لکه مار (خوشحال)

**زهر ــــ** :- (ز + هـ + ر ــــ) (فپ ،تر،اس، مو،ج ــــ رې) مارمهره ، هغه کانړے شان کوم چې د مارخوړلي زهر کوزوي.

**مهرو** :- (م+هـ+ رو) (ف، تر،اس ،مذ،ج ــ مهرویان) د سپوږمۍ په شان مخ لرونکے. مجازاً : ډېر زیات ښکلے ، معشوقه ، محبوب.

**مهري** :- (م + هـ +ري) (ف ، تر، صف) مهر سره تعلق لرونکے، مهر مینې ته منسوب.محبوب ، مینه کوونکے یا چې چا سره مینه کولے شي.

اوس د هېڅ د خندا خوند نشته حمیده
چــې د وژړل پــه مرګ مهري امزولي (حمید)

**مهري** :- (م+ هـ + ري) (ف تر،اس ، صف) ,, مهر،، سره تعلق لرونکے ، مهر ته منسوب.مهر واله،هغه چې مهر پرې لګېدلے وي.

**مهزوم** :- تښتېدلي ، په ماتې تللي ، شکست یافته.

کازان مهزوم تر سانه (حافظ)

**مهذهف** :- د مهذهف اصل معنی په هوا کښې الوتونکي (سپک) څیز ده.( په پښتو کښې استعمال د نیشت برابر دے.).

اے د حسن په اوصافو معرفه
مـه جبینه تن سیمینه مهذهفه (حافظ)

**مهلت** :- (م+هـ+ ل + ت) (ع ،اس،مذ ، ج ــــ ونه) وخت ، فرصت ، خالي وخت ، وقفه ، موقع.

**ــــ غوښتل** :- وخت غوښتل ، د مقرره وخت نه زیاتي وخت غوښتل ، موقع غوښتل.

**ــــ ورکول** :- وخت ورکول .میعاد ورکول ، د وعدې وغېره وخت ور زیاتول ، موقع ورکول.

**مهلک** :- (م + هـ + ل + ک) (ع،اس ، صف، مذ ، مو ــــ ه) هلاک کوونکے ، وژونکے.

**مهلکه** :- (م + هـ + ل + کَ) (عپ، تر،اس،صف ،مو، ج ــ کې) د ,, مهلک ،، تانیث دے.

**مهم** :- (م + هـ + م) (ع ، صف ، مذ ،مو ــــ ه) اهم اهمیت لرونکے، ضروري ، لکه : مهم خبر.

**ــــ ترین** :- (ــــ ت + ري + ن) (پ تر، صف) د ټولو نه زیات اهم ، دټولو نه / څخه زیات ضروري.

**ــــ توب** :- (ــــ تو + ب) (و ــــ مهم والے).

**ــــ والے** :- (ــــ وا + لے) (عپ تر،اس، مذ) اهمیت ، اهم ,,بودنه،، ضرورت.

**مهم** :- (م+ هـ+ م) (ع ،اس ، مذ ، ج ــ ونه / ات) په غم کښې اچوونکے. مجازاً : لوے او اهم کار ، لوے او ګران کار .جنګ ، معرکه. د کوم لوے او ګران کار کوونکے ، ټولے.

**ــــ استول** :-

**ــــ لېږل** :- د جنګ مېدان ته فوځ استول. د کوم ګران او سخت کار دپاره ټولے استول.

**ــــ کول** :- لښکر کول ، حمله کول ، لښکر کشي کول.

رعیت لکــه عیال ساته خوشحاله
په یاغي باندې مهم کاندې ناد شاه (خوشحال)

**ــــ سر کول** :- لوے او ګران کار سرته رسول ، لویه کارنامه تر سره کول.

**مهمات** :- (م+ هـ +م + ما + ت) (ع ، اس ، ج) د ,, مهمه ،، جمع ده .مهمونه ، ډېر اهم کارونه. اهم ضروریات ، لوازمات لکه : د جنګ مهمات.

**مهمان** :- (م + هـ +ما + ن) (ف،اس،مذ ) مېلمه.

**ــــ خانه** :- (ــــ خا + نَ) (ف تر، اس ، مو، ج ــ نې) د مېلمنو د ایسارېدلو ځاے. ځینو د هوټل یا سرائې معنې هم لیکلې ده.خو په پښتو کښې په دې معنا کښې ئې استعمال شاذ دے.

**ــــ دار** :- (ــــ دا + ر) (ف تر، اس ،مذ ، ج ــ ان ، مو ــ ه) مېلمه لرونکے ، د مېلمه خاطر تواضع کوونکے ، د مېلمه پالنه کوونکے.

**ــــ خانه دار** :- (ــــ دا +ر) (عف، تر،اس ، مذ، ج ــ ان) د مهمان خانې منتظم. د هوټل منتظم یا منیجر ، د سرائې منتظم.

**ــــ داري** :- (ــــ دا + ري) (ف تر،اس، مو) د مېلمه خاطر تواضع ، د مېلمه پالنه

**ــــ دوست** :- (ــــ دو + س + ت) (پ تر،اس ، مذ، ج ــــ ان) مېلمه دوست ، مېلمانهٔ پالونکے.

**ــــ عذر کول** :-د مېلمه خاطر ، مدار کول.

اور زمــا ددین دنیا پــــه کور کړه پوري
خو مې عذر په عزت د عشق مهمان کړې (حمید)

**ــــ نواز** :- (ــــ ن + وا + ز) (و ــــ مېلمه دوست).

**ــــ نوازي** :- (ــــ ن + وا+ زي) (ف تر،اس،مو) د مېلمه پالنه ، مېلمه دوستي.

**وزیر ــــ داري** :- (و + زي + ر ــــ) (عف ، تر ، اس ، مذ) هغه وزیر ، د چا په ذمه چې د حکومت د مېلمنو دخوراک ځاے ځائیګي وغېره ټول کارونه وي.

**مهماني** :- (م+ هـ + ما + ني) (ف تر،اس،مو) مېلمستیا ، دعوت.

**ــــ کول** :- مېلمستیا کول ،مېلمه کول ،دعوت کول.

**مهماني** :- (م+ هـ+ ما+ ني) (اس ، مع) د وینچي ځانګه ده. سپین ترین دي.

**مهمل** :- (م+ هـ + م + ل) (اس، صف، مذ ، مو ــــ ه) پرېښودے شوے ، ترک کړے شوے ،لـه استعماله وتے . بېهوده،بې معنې ، بېکاره ، سست پست ، هغه تورے (حرف) چې ټکے (نقطه) پرې نۀ وي.

**مهک زئ** :- (م+ هـ + ک+ز+ ئ) (اس، مع) د حامد زئیو ځانګه ده . (حامد زئ ، اڅک زئ ابدال ترین دي.

**مهمت خان خېل** :- (م +هـ+ م+ ت + خا+ن +خې + ل) (اس،مع) د تور ځانګه ده . (تور ،جاني خېل،ولي خېل،اتمان زئ ،دروېش خېل) وزیر دي.

**مهمت** :- (م+ هـ + م + ت) (اس،مع) د اتمانزئیو لوے ښاخ دے . (اتمانزئ ، دروېش خېل) وزیر دي . (په یوه شجره کښې مهمت ، د محمودبدل شکل ښکاره کړے شوے دے .په دې صورت کښې دا (م + هـ + مو + ت) په کار وو) (مهمتو ځانګې دادي : خدرخېل ، بوراخېل او ووزي خېل او حسن خېل) (په یوه شجره کښې بورا ته بورک یا بارک هم لیکلے دے.چې درننبت یا ښکاري. (بخاري).

**مهملـه** :-(م + ه + م + ل) د ,, مهمل ،، تانیث دے لکه : حائے مهمله ، (مهلمه حے) یعني هغه ,,ح،، چې نقطه نۀ لري.

**مهملات** :- (م+ هـ + م+ لا+ ت) (ع ، اس ، ج) د ,, مهمله ،، جمع ده .مهملې خبرې عبث ، بې مطلبه خبرې ، اوتې بوتې.

**ــــ پرېښودل** :- پـه نیمه کښې پرېښودل ، بغېر د پوره کولو یا حل کولو پرېښودل ، غفلت ځنې کول ، یو طرف ته اچول.

**تابع ــــ** :- (تا + ب+ ع ــــ) (عف ،تر، اس ، مذ) هم کلمه چې څۀ معنې نۀ لري .خو بل معنا ور لفظ سره یو ځاے راځي.

**مهمند** :- (م+هـ+ م+ن+ د) (ا س، مع) د غوریا خېلو پښتنو یوه لویه قبیله ده

اصل وطن ئې ارغستان وو . له هغه ځایه را وخوزېدهٔ . ځاے په ځاے استوګن شول . اخر د پېښور وادۍ ته راغلل . او دلاړاک ئې له دې ځایه وشړل. څهٔ خلق ئې په غرونو کښې اوسي او څهٔ په سمه. چې کوزه مهمند یادېږي. د برنو مهمندو څلور لوے لوے ښاخونه دي. یعنې ترک زئ ، حلیم زئ ، بائیزي او خوائیزي د کوز درې لوئې قبیلې دي . ککوزي ، دویزي او اتمان زي . د پښتنو درې نورې لوئې قبیلې د مهمندو همسایه وو . یعنې ملاګوري صافي او شلماني . د مهمندو مشران یا ملکان هم د خلیلو په شان ارباپان نومېږي.

**مهمند** :- ( مُ / مو + مو + هـ + م+ ن + د )( اس، مع ، ج ــــ ان ) د مهمند د قبیلې یو فرد ، مومند .

**مهمنده** :- ( م / مو + هـ + م+ن+د )( اس، مو ، ج ــــ دې / انې ) د ,, مهمند ،، تانیث دے .

**بر ــــ** :- ( ب + ر ــــ )( اس، مع ) د مهمندو د قبیلې هغه خلق چې بره په غېره علاقه کښې اوسي.

**کوز ــــ** :- ( کو + ز ــــ )( اس ، مع ) د مهمندو د قبیلې هغه خلق چې د پېښور په ضلع کښې اوسي.

**مهمند** :- ( م + هـ + م +ن + د )( اس ، مع ) د ,, خروټي ،، څانګه ده . زرکون دي.

**مهمند خېل** :- ( م + هـ + م + ن + د + خې + ل )( اس،مع ) د دولت خېلو څانګه ده . ( دولت خېل ، غالب خان خېل ، ملک دین خېل ) افریدي دي.

**مهمند خېل** :- ( ددغه )( اس،مع ) د کتیه خېلو څانګه ده . ( کتیه خېل ،حسن خېل ، متیا خانخېل ، کوکي خېل ) افریدي دي.

**مهمندي** :- ( م +هـ + م+ ن + دي )( اس،مع ) د انوخېلو څانګه ده . ( انو خېل ، ترې ،تور مان ،لقمان) خټک دي.

**مهمندي** :- ( م+هـ + م+ ن + دي )( اس، مع ) د خټکو یوه قبیله ده چې د چراټ په غرونو کښې اباده ده.

مهمندي زما د کډې لاس و پښې دي
راضي من دافـریدیو په کومک یم (خوشحال)

**مهمن زئ** :-( م + هـ + م + ن+ ز + ئ )( اس،مع ) د علي زئیو څانګه ده . اتمانخېل دي .

**مهموز** :- ( م+هـ +مو +ز )( ع ،اس ،مف ،مذ ، مو ــــ ه ) هغه لفظ چې د ,, همزه ،، توری یا اواز په کښې شامل وي.

**مهمه** :- ( مُ + هـ + مَ )( ع ، مو ) ضروري ، اهم، لویه.

**ــــ برخه** :- ( ــــ ب + ر + خَ )( عپ تر،اس، مو ــــ خې ) لویه برخه ، غټه حصه ، اهمه حصه.

**مهمېز** :- ( م+هـ + مې + ز )( ع ،اس، مذ ، ج ــــ ونه ) هغه د وسپنې مېخ چې د سورو د بوټانو پوندو سره لګېدلے وي. د اسونو د زغلولو دپاره اسونه پرې وهلے شي. ( اصلاً دا د ,, مهماز ،، اماله ده ).

**ــــ کول** :-

**ــــ ورکول** :- د اس په ګېډه باندې مهمېز سوخول، چې تېز زغلي ، د تېزولو دپاره اس په مهمېز وهل.

تهٔ خپل ځان سره مهمېز کړه څهٔ پروا کړې
کـه قـدم د چا په سر کېږدې براق ستا (خوشحال)

**ــــ کېدل** :- د چا دپاره اس له مهمېز ورکړے کېدل . مجازاً : اس تېز زغلولے کېدل ، تاخت کېدل.

د غمزې سمند ئې جوړ کړو و جولان ته
ګوره بیا به ئې په چا باندې مهمېز شي (خوشحال)

**مهند** :- ( م+ هـ +نْ + نَ + د )( ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه ) هندي شوے ، د بلې ژبې کوم لفظ چې په لږ څهٔ بدلون په هندي ژبه کښې استعمالولے شي.

**مهندس** :- ( م+هـ +ن + د+س )( ع،اس، مذ ،ج ــــ ان / ین ) د علم هندسه پوهان ، د اقلیدس ماهر ، انجنئیر . ( اصلاً دا لفظ د فارسي د ,,انداز ،، نه په عربۍ کښې ,,هندسه ،، شوے او بیا ترې مهندس سازشوے دے ).

**مهندسي** :- ( م + هـ +ن + د + سي )( ع،تر،اس ، مو ) د مهندس کار ، دمهندس پېشه ، داقلیدس مهارت ،انجنئیري.

**سر ــــ** :- ( س+ر ــــ )( عف،تر، اس ) لوے مهندس ، چیف انجنئیر.

**ــــ فلک** :- ( ــــ (س) + ف + ل + ک )( عف ، تر ،اس ) د اسمان مهندس ، د اسمان انجنئیر ، د ,,زحل، ستورې ته وایهٔ شي.

**مهڼ** :- ( م+ هـ + ن + ڼ )[م+هڼ]( اس،مذ ،ج ــــ ړي ) ماڼګے ، مهڼے .

**مهوت** :- ( م+هـ +و+ ت )( هـ ،اس ، مذ ، ج ــــ ان ) ماوت ، مهاوت ، د اتې پالونکے او چلوونکے .

تـن او روح سـره یـو مـــــه ګڼه جلا دي
روح مهوت غوندې پرې سور صورت فیل دے (دولت)

**مهور** :- ( م+هو + ر )( اس، مذ ) مهیرګ ، لعنت ، پتې منه، بده رده وینا .

که تهٔ جیو د قربان ووائې وچاته
بدله به درته پیټ کا مهور لاهم (یونس)

**مهورا** :- ( م+هو + را )( اس،مع ) د خدرانیو څانګه ده. جعفر دي.

**مهوره** ( م+هو+ ر )( اس،مع ) موره ، په باجوړ کښې د یو مشهور غر نوم دے.

اول کښلې محبوبه چې ئې ګورم
دویم بـاز د مهورې دریم ښهٔاس (خوشحال)

**مهوزي** :- ( م+هو + ز + ئ )( اس ،مع ) د حمزه زئیو څانګه ده. ( حمزه زئي،سنزر خېل ) کاکړ دي.

**مهوس** :- ( م+هـو + و + س )( ع،اس، صف، مذ ،مو ــــ ه ) هوس کوونکے ، حرصي، حرص کوونکے ، ( اُر ) کیمیاګر ، هغه سړے چې سرهٔ زر جوړوي.

**مهیا** ( م+هـ+ ئ+ یا ) موجود ،حاصل .

که ئې ګور کړې سره بیارته
هېـڅ بـه نـهٔ وي مهیـا (خوشحال)

تیار ، اماده .

مهیا و مرګ ته کښېنه ! (خوشحال)

**ــــ کول** :- حاضر کول ، راوړل ، پېش کول ، موجودکول.

**ــــ کېدل** :- حاضر کېدل ، موجودکېدل ، راوړلے کېدل.

**ــــ ګڼل** :- تیار ګڼل ، موجودګڼل.

که د زړهٔ سترګې دې شته ننداره وکړه
پــه وصـــال کښې مهیا ګڼه هجـران (خوشحال)

**مهیب** :- ( م+هـي+ ب )( ع ، صف،مذ ،مو ــــ ه ) هېبت نـاک ، خوفنـاک ، ویروونکے ، دهشت ناک.

**مهیج** ( م+هــ + يْ + ج )( ع،اس، صـف ، مذ ،مو ــــ ه ) راپـاروونکے ، برانګېخته کوونکے ، راولاړوونکے .

**ــــ بیانات** :- ( ــــ ب + یا + نا+ ت )( عف، تر،اس، ج ) داسې بیانونه یا وېناګانې چې اوریدونکي راپاروي . جذبات راولاړوونکي،تقریرونه، اشتعال ورکوونکي ، بیانات.

**ــــ تقریر** :- ( ــــ ت + ق + رې + ر )( عف ، تر،اس،مذ ،ج ــــ ونه ) هغه تقریر یا وعظ کوم چې د اورېدونکو جذبات را اوچت کړي. اشتعال انګیز تقریر.

**مهیرګ** :- ( م+ هي + ر + ګ )( حرف ) د کرکې او نفرت توری دے . د لعنت بده رده وینا وغېره معنې ورکوي.

په اخلاص که راته مهیرګ وائې خوښ یم
نـــهٔ هغـــه چې په دروغ که چار لباس (مصري خان)

**ـــــ وئیل** :- بدوئیل ،لعنت وئیل۔

پـــه لبنـــکر لبنـــکر نـــارو شـــوم ورتـــه ســـتړے
دا کانـــهٔ راتـــه نـــهٔ مهیـــرک وائـــي نـــهٔ جـــار

**مهیرګه** :- (م+هې + ر + ګَ)(اس ، مو ، ج ـــ ګې) وبا ، مرض۔

**پټې ـــــ** :- (پ +ټې ـــــ)۔

**پټو ـــــ** :- (پِ + ټو ـــــ)(حرف) د دواړو لفظونو معنٰی یو شان ده۔د تاکېد دپاره دواړه یو ځاے راوړے شي۔د کرکې ، نفرتاو د وېزارۍ دڅرګندونې دپاره استعمالېږي۔ (پټے اصلاً دهندی لفظ ,,پهټیے ،، دے۔په هندي ، هندکو کښې دا هم دمرکب (پهټے منه ) په شکل کښې هم په دغه معنٰی کښې استعمالېږي۔

**مهینه** :- (م+ هي +ن)(صف ، مو، ج ـــــ نې) د ,, مهین ،، تانیث دے۔ پسته ، نازکه ، نرۍ۔

د مرد پېغور ده جامه وربېنمینه
کـــه دې مهینه دي نه لارنګینه (خوشحال)

**مهینـــه** :- (م +هـــي + نَ)(صـــف،مو) اګـــاهو راتلـــونکے ، د عـــام وخـــت نـــه اول راتلونکے

که په عشق کښې ځواني مرګ مرمه ناصحه
کشکې بیـــا مـــومم دغـــه مهینـــه فېض (حمید)
د وخت نه اول را رسېدونکے فصل۔

**مهینـــه** :- (م + هي +ن)(فـــپ تـــر ، اس ، مـــذ ، ج ـــــ نې) وظیفه،میاشـــتیزه ۔ (تنخواه ) مواجب۔(ه ) میاشت۔

هله ئې د وروځو په هلال لیده اخترکا
لړ و ډېر چې مومي څوک وصل مهینه (خوشحال)

**مهینۍ** :- (م + هي + ن +ۍ)(اس،مو ) مهینه ،وظیفه،تنخواه ۔

**ـــــ خوړل** :- تنخواه خوړل ، وظیفه مواجب اخیستل۔

نوکري د معشوقو کوم په عشق کښې
مهینۍ نـهٔ د بهلول نهٔ داورنګ خورم (رحمان بابا)

**مهے** :- (م +هے)(اس، جم) د یوقسم دال نوم دے۔ماش۔

**مهے** :- (م +هے )(اس ، مذ ، ج ـــ هي / ان) کب ، ماهي۔

**مئي** :- (مه + ئي )(اسم) دانګرېزۍ کال پینځهٔ میاشت۔

**میا** :- (م+یا )(اس ،مو ) د ګډو رمه ، د ټولو حېواناتو ګله۔

**میا** :- (م+ یا)(اس،مذ، ج ـــ ګان)(و ـــــ میاں )۔

**میار** :- (م+ یا + ر )(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) عېب ، نقص ، کمے۔

**میارن** :- (م + یا + ر + ن)(پ تر ، صف،مذ،مو ـــ ه ) عېب ناک ، عېب جن ، نقص واله

**میاسه** :- (م+ یا+ س )(اس،مذ ، ج ـــــ سي ) ماشے ، میاشه۔

**میاشت** :- (م + یا +ں + ش + ت)(اس ، مو ، ج ـــــ تې) ماه ، مهینه ، تقریباً دېرش ورځې۔ سپوږمۍ ، نوې سپوږمۍ ، هلال ۔

**ـــــ په میاشت** :- (ـــــ پ +م + یا+ ش + ت )(پ تر ،اس، ظر) په هره میاشت کښې ،ماهوار ۔

**ـــــ دلمرۍ ورځې لیدل** :- نوې میاشت په ورومبۍ ورځ کتـل ۔مجازاً : په ورومبي نظر باندې د چا داخلاقو او عادتونو اندازه لګول۔

**قمري ـــــ** :- (ق+ م + ري ـــــ)(عف ،تر،اس ، مو،ج ـــــ تې) د قمري کـال میاشت ، هغه میاشت چې د قمري کیلنډر (تقویم ) سره تعلق لري۔

**ـــــ کتل** :- په اسمان کښې نوې میاشت په نظر راوستل۔

**ـــــ لیدلے کېدل** :- هلال ښکاره کېدل ، نوې میاشت شروع کېدل۔

**میاشتنۍ** :- (م+یا+ش + ت +ن + ۍ) د ,, میاشتې ،، تانیث دے۔

**میاشتنے** :- (م + یا+ش + ت + نے )(پ تر ،اس،ظر،مذ ج ـــ نې ) میاشت سره تعلق لرونکے ۔میاشت په میاشت په عمل کښې راتلونکې ۔ماهوار ۔د یوې میاشت د عمر ۔

**میاشتو**:- (م+ یا +ش + تو ) د ,, میاشـتې ،، (جمع ) بدل شکل چې د مغیرهٔ تورو سره راځي۔

**په ـــ** :- (پ ـــ)(پ،تر، اس ، ظر ) تر ډېرو میاشتو ۔ لکه: په میاشتو مې انتظار وکړ۔

**پـه ـــ میاشـتو** :- (پ ـــــ م + یـا + ش + تـو )(پ تـر ،اس، ظـر ) ډېرې زیـاتې میاشتې، ډېره اوږده موده (چې د میاشتو په حساب ئې اندازه لګېدلے شي )۔

**میاشتے** :- (م +یا+ ش+تے ) د,,میاشت ،، جمع ده ۔ د ,,میاشت،، بدل شکل دے چې د مغیرهٔ تورو سره راځي۔

**د ـــــ** :- میاشت سره تعلق لرونکے ، میاشت ته منسوب۔د میاشت په سر۔

**میاشتینے** :- (م+ یا+ ش + تي + نے )(و ـــ میاشتنے )۔

**میاش کوډۍ** :- (میا+ ش + کو + ډ +ۍ)(پ تر ،اس،مو ) مچر دانۍ۔

**میاشه** :- (م + یا + ش)(اس ، مو ، ج ـــ شي) ماشے ، میاسه۔

**دملېریا ـــ** :- (د+ م+ لې + ر/ ري + یا ـــ)(پ انګ تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ شي) هغه ماشے چې د ملېریا (د منې ) تبه پېدا کوي۔

**میاشے** :- (م + یا+ شے)(اس ، مذ ، ج ـــ شي ) ماشے ، میاشه۔

**میاګي خېل** :- (م + یا + ګي + خې + ل )(اس،مع) د ولید خېلو څانګه ده۔ (ولید خېل ،ملي خېل ، ډاچ خېل ، بلي خېل ،منزۍ ، علي زۍ) محسود دي۔

**میامۍ** :- (م+ یـا + م + ۍ)(اس ، مـع ) د کابـل خېلـو څانګه ده ۔(کابـل خېـل ،ولي خېل اتمان،دروېش خېل) وزیر دي۔

**میامي خېل** :- (م+یا+ مـي + خې + ل)(اس ، مـع) د عبدالرحمان خېلو څانګه ده ۔ (عبدالرحمان خېل ،محمدخېل ، ملخ ، ملي زاد) دوړدي۔

**میاں** :- (م + یا + ں)(اس ، مع) میاں (یا جمع = میانګان) د پخوانو بزرګانو او د نېکو خلقو اولاد ته وایهٔ شي۔دا بزرګان ځاے په ځاے اوسېدل ځکه د دویي اولاد هم په مختلفو علاقو او مختلفو پښتنو قبائلو سره اوسي۔ پښتانهٔ د دویي هم لکه د سېدانو ډېر قدر کوي ۔ځېنې په کښې سیرۍ هم لري۔ په دې بزرګانو کښې د بنېر پیر بابا ،د زیارت کاکاصاحب ،د اکبر پورې اخون پنجو ، دڅمکنو میاعمر ، د اټک حضرت جي ، د کوهاټ حاجي بهادر ډېر مشهور دي۔ اکثر په هر لوے کلي کښې پخوا څوک نه څوک یو بزرګ او نېک سړے ضرور تېر شوے دے ۔ځکه په هر کلي کښې د دغو بزرګانو اولاد تـه میانګان وائي ۔ځېنو تـه صاحبزادګان هم وائي۔

**میاں خان زۍ** :- (م +یا+ں+ خا +ن +ز+ ۍ)(اس ،مع ) یوه مشوانیي قبیله ده۔

**میاں خان زۍ** :- (م + یا + ں+ خا +ن +ز+ ۍ)(اس ،مع ) د علي زئیو څانګه ده۔ ( علي زۍ ، نصرت زۍ ، اځکزۍ) ابدال ترین دي۔

**میاں خان زۍ** :- (م + یا +ں+خا +ن +ز+ ۍ)(اس،مع ) د بیزوډئیو څانګه ده ۔ بیزوډي ، ملک شاهي ، ابمل خېل بهلول زۍ) محسود دي۔

**میاں خان زۍ** :- (م + یا + ں+ خا +ن +ز+ ۍ)(اس،مع ) د بغداد خېلو څانګه ده ۔ (بغداد خېل ، کېمل خېل ، ارمړ خېل ، سپاه ) افریدي دي۔

**میاں خېل** :- (ددغه)(اس ،مع ) د بره خوزئیو څانګه ده۔ (بره خوزي ، خدرخېل ، مهمت خېل، اتمانزۍ ، دروېش خېل) وزیر دي۔

**میاں خېل** :- (ددغه)(اس ،مع ) د عمر خېلو څانګه ده۔ (عمرخېل ،انائي ، بډۍ ،زخاخېل) افریدي دي۔

**میاں خېل** :- (ددغه)(اس ،مع ) د جانه خوړو څانګه ده ۔ (جانه خوړ ، حسن

خېل، ادم خېل) افریدي دي ـ د میاں خېلو څانګې دادي : زرین خېل ، سرمست خېل او مرید خېل.

**میاں خېل** :- (ددغه)(اس،مع) د ملک شاهیو څانګه ده ـ (ملک شاهي ، جاني خېل ، ولي خېل ، اتمان زئ ،درویش خېل) وزیر دي.

**میاں خېل** :- (ددغه)(اس ،مع) د ملي خېلو څانګه ده ـ (ملي خېل ، عبدک ، تپي زاد) دوړ دي.

**میاں خېل** :- (ددغه)(اس ،مع) د پاونده ؤ یوه قبیله ده. په ډېره اسماعیل خان کښې د ګنداپور او د بابړو په مېنځ کښې اوسي. پخوا لوے تاجران او شته من خلق وو ـ د دویي درې لوئې څانګې دي ـ ایسوټ خېل ، بختیار او سین خېل دغه بختیار اوس په میاں خېلو ګډ شوي دي.

**میاں خېل** :- (م+یا +ں+ خې +ل)(اس،مع) د ناصرو څانګه ده ـ غلزئ دي.

**میاں ولي** :- (م+ یا + ں + و + لي)(اس ،مع) د دودخېلو څانګه ده ـ (دودخېل، میرحسني،مچا،مده خېل ابراهیم خېل ، اتمان زئ ، درویش خېل) وزیر دي.

**میاں ډک خېل** :- (م+ یا + ں+ ډ+ک +خې + ل)(اس ،مع) د منډي خېلو څانګه ده منډي خېل ، مدخوزئ ،خدرخېل ، مهمت خېل ، اتمانزئ ، درویش خېل) وزیر دي.

**میاں ګل خېل** :- (م+ یا + ں+ګ +ل+ خې + ل)(اس،مع) د کنډیو څانګه ده ـ (کنډي ، پیرباخېل، هاتي خېل ، سین خېل،احمدزئ،درویش خېل) وزیر دي.

**میان** :- (م+ یا + ن)(ف،اس،ظ) مېنځ ، وسط،ملا،کمر،اثنا ، وخت.

**میانجي** :- (م+ یا+ ن+ جي)(اس ، مع) مېنځ ګړتوب ، ثالثي ، دریم ګړتوب منصفي.

**ـــ ګري** :- (ـــ ګ+ ري)(ف تر،اس،مو) دریم ګړتوب ، مېنځ ګري، ثالثي.

**میانځ** :- (م+ یا + ن + (د) ز)(و ـــ مېنځ ).

**میانځنے** :- (م+ یا+ ن+ (د) ز +نے)(و ـــ مېنځ نے ).

**میانده** :- (م+ یا + ن+د )(اس ،مو ، ج ـــ دې) هغه کانړے چې پرې مالګه مصاله وغېره اوړۀ کوي.

**میاندے** :- (م + یا +ن + دے)(اس،مو،ج) د ,,مور،، جمع ده.

**میانګنه** :- (م+یا+ن+ ګ+ ړه)(اس ، مو،ج ــ نې) د ,, میاں ،، تانیث دے.

**میانه** :- (م+یا+نَ)(فپ ، تر،اس،ظ) د ,, میان ،، بدل شکل دېچې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**میانه** :- (م + یا+نَ)(صف) درمیانه ، د مېنځ (درجې یاحالت) وسطي ـ د ذوالقعدې میاشت ـ د هجري کال یوؤلسمه میاشت.

**ـــ حال** :- (ـــ حا + ل)(ف تر صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه سړے چې مالي حالت ئې درمیانه وي. یعني نۀ ډېر مالداره وي او نۀ ډېر خوار.

**ـــ رو** :- (ـــ رو)(ف تر، صف) په منځومانه لاړ تلونکے ـ مجازاً : هغه سړے چې د دوۀ ؤ لرې سرونو په مېنځ مېنځ کښې کار کوي نۀ افراط کوي او نۀ تفریط.

**ـــ روي** :- (ـــ ر + وي)(ف ، تر،اس،مو) د مېنځ لار نیونه ، په اوسط درجه کار کونه. نۀ ډېر زیاتے نۀ ډېر کمے ـ نۀ ډېر زیات خرڅ اونۀ ډېره شومتیا.

**ـــ قد** :- (ـــ ق + د )(عف ، تر، صف ،مذ ،مو ـــ ه) د مېنځ درجې قد لرونکے ، چې نۀ ډېر لوړ وي او نۀ ډېر مندرے.

**ـــ قدي**:- (ـــ ق + دي) درمیانه قد لرنه ، چې نۀ ډېر لوړ (دنګ) وي او نۀ ډېر مندرے.

**در ـــ** :- (د+ ر ـــ)(ف تر، صف) د مېنځ درجې.

**له ـــ** :- (ل ـــ)(پ تر ، اس ، ظ) له منځه ، د مېنځ نه / څخه ، لکه ته زمونږ له میانه ووزه. په مېنځ کښې (ر ـ ق) ، لکه : ددویي له میانه فرق نشته.

**میانه** :- (م+ یا + نَ)(اس،مع) وائي چې د دې قبیلې اصل استوګنه د اباسین نه نمرخاتۀ طرف تهچېرته وه وروستو د دویي مختلفې کورنۍ په سرحد کښې ځاے په ځاے مېشتۀ شوې. ځینې خلق ئې بنګښوته نزدې اباد دي.

**میاني** :- (م+ یا + ني)(اس، مع) د درې پلاراؤ څانګه ده ـ (درے پلارا ، شخي ، وړسین) بیټني دي.

**میاني** :- (م + یا + ني)(اس،مع) دناصرو څانګه ده. غلزي دي.

**میاني** :- (ددغه) (اس ، مع) یوه وړه شان قبیله ده. پاونده سوداګر دي.

**میانئ** :- (م+ یا+ن + ئ)(اس ،مو) همیانۍ ، تیلۍ ،کڅوړه، (دروپو پېسو).

**میانیر خېل** :- (م + یا + ني + ر+خې + ل)(اس، مع) د ولي داد خېلو څانګه ده. (ولي داد خېل ، للي /لالي خېل ، عبدلي ، اېمل خېل ، بهلول زي) محسود دي.

**میاؤں** :- (م + یا + ؤ + ں )(اس صوت) د پیشو اواز.

**ـــ میاؤں کول** :- د پیشو اوازونه کول. د پیشو په شان اوازونه کول. مجازاً : څۀ خبره بیا بیاکول ، اصرار کول.

**میت** :- (مي + ت)(اس،مذ ، ج ـــ ونه / ان) موتے (سوک )، مشت.

**میت** :- (مي + ت)(هـ ، اس ،مذ ) دوست، یار.

**میت** :- (م+ ئ+ي + ت)(ع،اس،مذ ، ج ـــ ونه / اموات/ موتۍ) مړے ، لاش ، نعش.

**میټا فزیک** :- (م+ تا +ف + زي + ک)(و ـــ مېټافزیک ).

**میټالورجیست**:- (مي + تا +ل + ر + ج +س +ت)(فر،تر،اس ، مذ ،ج ـــ ان) د دهاتونو (فلزونو) د صفاکولو والا. دهاتونه جوړوونکے ، مېټلرجسټ.

**ـــ صنائع** :- (ـــ ص + نا + ئي + ع)(ف ، تر ، اس ، ج ) ددهاتونو (فلزونو) د صفا کولوصنعتونه. میټاکرجي.

**میټر** :- (مي / م + ت + ر)(و ـــ میټر).

**مېټر** :- (مې + ت + ر)(اس،مذ ،ج ـــ ان) د ,,مهتر،، بدل شکل دے. (و ـــ مهتر) سائنس ، درسي خدمتګار.

**مېټرو** :- (م + ت+ رو)(و ـــ میټرو).

**میتل** :- (مي + ت + ل)(مص) متیازې کول ، پېشاب کول.

**میټینګ** :- (مي + تي +ن+ګ)(و ـــ میټنګ) ملاقات، جلسه، یوځاے کېدنه ، غونډه

**مېټود** :- (مې + تو +د)(و ـــ مېټوډ).

**مېټوډیک**:- (م + تو + ډي +ک)(و ـــ مېټوډیک ).

**مېټوډ** :- (مې / م + تو+ډ)(انګ،اس،مذ ) طریقه،طور، وضع.

**مېټوډیک** :- (م+ تو+ ډي +ک)(انګ ، اس ، صف) باقاعده ، ترتیب سره ـ د اصولو مطابق.

**میتوزه** :- (مي +تو+زَ)(صف) د ,, موتازه ،، بدل شکل دے.

**مېټوزي** :- (مي + تو +زي)(اس ، مو) موتازي ، حاجت مندي.

**میته** :- (م+ ئ+ ي +تَ)(و ـــ میت).

**مېتهتیمېټکس**:- (مې+تې +مې +ټ+ک+س)(انګ،اس،مذ ) ریاضي ، ریاضیات.

**مېتے** :-(مې + ت + ئ)(و ـــ مېتے ).

**مېتئ** :- (مې + ت +ئ)(اس ، مع) هغه سیخ چې سر ئې کوږ طرف ته کوږ وي ـ د واؤرې د ماتولو دپاره په کارولے شي.

**میتے** :- (م/ مې +تے)(اس، مذ ، مو ـــ تي) هغه اله چې دواړو غاړو ته تېرۀ سرونه لري او د کانو د تراشلو دپاره په کارولے شي. ګینتري.

**مېټ** :- (مې +ټ)(اس،مذ) معدني سره خاوره۔ د اوږو کوټه۔

**مېټ** :- (مې + ټ)(انگ ، اس ، مذ) ملگرے ،رفیق ، د لاړې مل ، شریک وال، هم مجلس۔

**میټابـالزم** :- (مـې + ټـا + بـا/بو + ل +ز +م)(انـگ ،اس،مـذ) میټـابلزم ، پـه حیواناتو او نباتاتو کښې هغه کار چې په کښې خوراک پـه ژوندۍ مـاده کښې یا ژوندۍ ماده په ساده ماده کښې بدلېږي۔

**میټاخانخېل** :- (م/ مي +ټا + خا+ن+ خې +ل)(اس، مع )د کوکي خېلو یـوه څانگـه ده افریدي دي۔

**میټاخېل** :- (مي + ټا +خې + ل)(اس، مع) د بزن خېلو څانگـه ده ۔(بـزن خېـل ، شادي خېل ، نصرادین ، کالو خېل ، احمدزئ ،درویش خېل) وزیر دي۔

**میټاخېل** :- (مي + ټا +خې + ل)(اس، مع) د شمل څانگه ده ۔(شـمل، حسـوخېل ، ملي زاد ) دوړ دي۔

**میټاخېل** :- (ددغه )(اس،مع) د خرمنج خېلو څانگه ده ۔(خرمنج خېـل ، خواجه خېل، میامئ ، کابل خېل ، ولي خېل ، اتمانزئ ، درویش خېـل) وزیـر دي ۔

**میټاخېـل** :- (ددغـه )(اس، مـع) د بادیوئیوڅانگـه ده ۔ (بـادیوئ، خلـي خېـل، شمن خېل) محسود دي۔

**میټـافزکس** :- (م+ ټـا + ف + ز+ک +س )(انـگ ،تـر،اس ، ج ) د ماوراءالطبیعـه علم، میټافزیکس۔

**میټافزیک** :- (مي + ټا + في +زي+ ک )(انگ ،اس) الٰهي، فطري،طبیعي۔

**میټائي** :- (مي+ ټا + ئي )(اس،مو ) متیائي ،خواږهٔ ، شیریني۔

**میټـر** :- (مـې +ټ+ ر )(انگ ،اس ، مـذ ،ج ـــونـه) هغـه الـه چې دکوم څیـز د لگښت یا د کار اندازه ښائي۔

**میټر** :-(مې+ ټر )(اسم ،واحد ، مذکر) د ځینو څیزونو د مېچ کولـو الـه لکـه د رکشې ، بجلۍ یا گېس میټر۔

**دبرېښنا ــ** :- (د+ب+رې+خ/ش+نا ــ)(انگ پ تر ،اس، مـذ ج ـونـه) د بجلۍ د خرڅ د اندازې لگولو اله ، د بجلۍ میټر۔

**میټـرک** :-(مـې + ټ + ر +ک )(انـگ ، صـف) د میټـر سـره متعلـق ، میټرتـه منسوب د میټر سسټم ، هغـه سسټم چې اعشـاریه پـه کښې پکـارېږي ، اعشاري۔

**مېټـرک** :- (مـې + ټ + ر + ک )(انـگ ،اس ،مـذ ) د مېټریکیـولـې شـن لنـډیز شکل دے ۔د هائي سکول ، لوړې لاړې یا عالي ښوونځي ۔د تعلیم اوچتـه درجه ، لسم جماعت۔

**دـــ امتحان** :- (د ـــ ا+م + ت+ حا + ن )(انگ ،پ تر،اس، مـذ ، ج ـونـه ) د میټرک د درجې د طالب علمانو امتحان ،د لسم جماعت امتحان۔

**میټرکپولېټ** :- (مې + ټ+ر+ک + یو + لې+ ټ)(انگ ،اس ، مـذ ، ج ـــــان ) هغـه طالب علم چې د لوړې مدرسې (عـالي ښـوونځي ) د تعلیم نـه فـارغ شوے وي۔ لسم جماعت پاس۔

**مېټرن** :- (مې + ټ + ر +ن )(انگ،اس،مو) مېرمن،مېروښه ښځه ۔د هسـپتال ( روغتون) یا د بندي خانې مشره ښځه ، مشره نرسه۔

**میټرو** :- (مې+ټ +رو )(انگ،اس) د میټرو پولس لنډیز شکل۔

**میټروپـولس** :- (م+ ټ+ رو+ پـو+ ل+س )(انگ ، اس ، مـذ ) د یـو ملـک لـوے ښار ، دارالسلطنت۔

**میټله جسـټ** :- (مې +ټ +ل+ر +ج+س+ ټ)(انگ ، تر، اس ،مذ ، ج ـــ ان) د دهاتونو (فلزاتو) د صفا کولو د کار پوهان۔

**میټلرجي** :- (مې + ټ +ل + جي )(انگ ، تر ، اس ، مو) د دهـاتونو (فلزونـو) د صفا کولو هُنر۔

**مېټنـگ** :-(مـې+ټ +ن+گ )(انـگ ، اس ،مـذ ) یـو ځـاے کېدنـه ، ملاوېدنـه، جلسه ، جلسه کې۔

**مېټنگ** :- (مې+ ټنگ )(اسم، انگرېزي) مجلس ، غنډه۔د خبرو اترو او صلاح مشورې له پاره دخلقو یو ځاے کېدنه۔

**مېټني** :- (مې + ټي + ني )(انگ ،اس) د غرمې نه / څخه وروستو فلم یا ډرامـه ښودنه۔ لکه مېټني شو۔

**میټها / میټه** :- (مي + ټا )(هـ ، صف) خوږ ، شیرین۔

**مېټیریالسټي** :- (مې + ټي + ر+یا+ل+س +ټي)(انگ تر ) مېټیریـل یعنـي مـادې سره تعلق لرونکے ، ماده پرستي سره متعلق ، ماده پرستي۔

**مېټیریل** :- (مې+ټي+ر+ي + ل )(انگ ، اس ، مذ ) مواد ، سامان ، مادي۔

**مېټیریلزم** :- (مې + ټي + ر + ي + ل + ز +م )(انگ ، اس ، مـذ ) مـاده پرستي ، هغه عقیده چې روح هم جسم والا گڼي۔

**مېټیریلسټ** :- (مې + ټي+ ر+ يَ+ ل + س+ ټ)(انگ ،اس، مذ ، ج ـــ ان) مـاده پرست ، هغه سړے چې روح هم جسم واله گڼي ، د روح منکر ، دهریه۔

**مېټیـورو لـوژي** :- (م + ټـې +ر +یو+لـو + ژي )(و۔ مېټیورولـوجي) د اسـماني حادثو علم ، د اسماني کائنات علم۔

**مېټیورو لوژیک** :- (م + ټې + ر +یو+ لو + جي + ک )(و ــ میټیورولوجیـک ) د ماتېدونکي ستورو په حقله ، د اسماني حادثو سره متعلق۔

**میثاق** :- وعده ، قول او اقرار ، معاهده۔

لکـــه بـــاد د صبـــا راشي زر گذر کا
ماخوشحال چې ازمئیلے دے میثاق ستا (خوشحال بابا)

**د ـــ ورځ** :- (د ـــو + ر +(د) ز )(عپ ، تر ، اس ،مو ) د وعدې ورځ ، دازل ورځ ، هغه ورځ چې د بني ادمانو روحونو دخدا ے پاک د ربوبیت اقرار کړے وۀ۔

**میثاقي** :- (مي + ثا + قي )(عف،تر،صف) میثاق سره تعلق لرونکے ، میثـاق تـه منسوب۔د وعدې ، د قول اقرار ، د لوظ قول۔

**مېجـر** :- (مـې + ج + ر )(انـگ ،اس،مـذ ،ج ـــ ان) د فـوځ یـوه عهـده چـې د کپټن (کپتان) نه / څخه بره او د لفټننټ کرنل نه / څخه لاندې وي۔

**ـــ جنرال** :- (ـــ ج + ن + را +ل )۔

**ـــ جنـرل** :- (ـــ ج + ن + ر + ل )(انگ تر، اس،مذ ،ج ـــ ان) د فـوځ یـوه لویـه عهده

**مېجسټرېټ** :- (م+ ج + س + ټ + رې+ ټ)(انگ ،اس، مذ ،ج ـــ ان، مـو ـــ ه) د مقدمو د فیصله کولوحاکم ، قاضي ۔ د عـدالت حاکم ، د فوجداري عـدالت حاکم۔

**مېځرے** :- (مې+ (د)ز+ ر +ے)(و ـــ مېزرے)۔

**مېچ** :- (مې + چ )(انگ ،اسم ،مذ ، ج ـــ ونه) د لوبو مقابله ،یو شان والے ، برابر والے او نور ، ناپ کچ۔

**ـــ تړل** :- دلوبو د مقابلې دپاره ورځ ځاے او وخت وغېره په حقله فېصله کول۔

**ـــ کول** :- د مېچ تړلو نه پس لوبه کول۔

**ـــ کټل** :- د لوبې په مقابله کښې بریالے کېدل۔

**مېچن** :- (مې+ چن )(پ ، اسم ، مو ، ج ـــ ني ) د غلې دانې اوړهٔ کولو مشین کوم چې په لاس گرځولے شي۔د ژرندې هغه قسم چې په لاس چلولے شي۔

**ـــ رېبول** :- په مېچن دانې اوړه کول۔

**ـــ اوړول** :- چا نه د مېچنې د چلولو کار اخستل۔محاورتاً : بېگار اخستل ، فتیک اخستل ، چا باندې ظلم یا زیاتے کول۔

**ـــ کول** :- په مېچن دانونه اوړهٔ یا دل جوړول۔ په مېچن شولې وهل۔

**اړولي ـــــ کرځول** ( په چا ):- پښتو محاوره کښې ډېر زيات ظلم کولو ته وائي ـ محاوره کښې د سزا په توګه سخت بېګار اخستلو ته وائي ـ

**مېچنۍ** :- ( مي +چ +نۍ )(اس ،مو ) شمشتۍ ،د شمشتو مؤنث ـ

**مېچنې** :- ( مي + چ + نې )(اس ، مذ ، ج ـــ ني ) شمشتو ، د شمشتۍ نر ـ

**مېخ** :- ( مي + خ )(اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د وسپنې هغه وړوکې شان مېخ چې يو سر ئې پلن او بل سر ئې تېرهٔ څوکه جوړه شوې وي ـ د لرګو د ټوټو د يو ځاے کولو دپاره پکارولے شي ـ د ستېيل مېخونه هم وي کوم چې په سختو څيزونو کښې هم ټک وهلے کېدے شي ـ د مېخ جمع لکه چې مېخونه ده ـ دغه لغت وجې په حالت کښې څينې مرکبونه جوړوي ـ چې په کښې محاورې هم مېنځ ته راځي ـ لکه: مېخونه ټکوهل ، ، چې محاوره کښې مضبوطولو يا کلکولو ته هم وئيلے شي ـ

**مېخال** :-( مي + خا + ل )( عبر ،اس، مع ) حضرت ميکائيل [۴] ـ

**مېخانه** :- ( مې +خا + ن )( ف تر ،اس ،مو، ج ـــ نې ) شرابخانه ، د شرابو د څښکلوځاے ـ

**مېخانيک** :- ( مې + خا + ني + ک )(و ـــ مېکانک ) ـ

**مېخانيکي** :- ( مې + خا + ني + کي )(و ـــ مېکانکي ) ـ

**ـــ انسان** :- ( ـــ ا + ن + سا + ن )( انګ ، ف تر ،اس ،مذ ، ج ـــ ان ) مشيني انسان ـ

**ـــ ښوونځے** :- ( ـــ خو/شو +و +ن +( د )ز ے ) د مشيني کار د ښودنې ځاے ـ

**ـــ صدمه** :- ( ـــ ص + د +م )( انګ ف تر ، اس مو ، ج ـــ مې ) مشيني صدمه ـ

**ـــ کول** :- مشيني ګرځول، په کوم کار کښې د مشينونو نه / څخه کار اخيستل ـ

**ـــ کېدل** :- مشيني کېدل ،کوم کار د مشينونو په ذريعه کېدل ـ

**مېخانيکيت** :- ( مې + خا +ني+کي + ي + ت )( انګ ، اس ، مو ) مشين والے ، مشينيت ، مکانيکيت ـ

**مېخ ټک** :- ( مي + خ + ټک )( پ تر ،اس ، مذ ) د هلکانو ديوې لوبې نوم دے ـ

**مېخچو** :- ( مې + خ + چو )( اس ،مذ ،ج ـــ ګان ) د مېخ د ټک وهلو اله ، ستک ، ډبلۍ ـ

**مېخ چوب** :- ستک ، د مېخ يا نور څهٔ د ټک وهلو اله ـ

**مېخزين** :- ( مي + خ + زي + ن )(و ـــ مېګزين ) ـ

**مېخک** :- ( مي + خ + ک )( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) وړوکے مېخ ، ( دمېخ تصغير دے ـ مېخکے ، د زنانهٔ د پوزې يو وړوکے شان کالے ـ چارګل ـ د پښو مرض ـ د يو ګل نوم دے ـ

**مېخکے** :- ( مي + خ + کے )( اس ، مذ ، ج ـــ کي ) د زنانهٔ د پوزې يو کالے ، چې د وړوکي شان مېخ په شان وي ـ

**مېخوار** :- ( مې + خوار )( ف ، مذ ) شراب نوش ـ

**مېخوارهٔ** :- ( مې+خ +وا+ ر )( ف تر ،اس ،مذ ،ج ) د ,,مېخوار ،، جمع ده ـ

**مېخور** :- ( مي +خو + ر )( ف تر ،اس ، صف ، مذ ) شراب څښکونکے ، شرابخور ، شرابي ـ

**مېخوره** :- ( مې + خ + و + ر )( ف تر ،اس ،مو ، ج ـــ رې ) د ,, مېخور ،، تانيث دے ـ ( د مېخورې تلفظ ( مې + خ + و +رې ) دے ـ

**مېخي** :- ( مي + خي )( ف تر ، صف ) مېخ سره تعلق لرونکے ، مېخ ته منسوب ـ

**ـــ خط** :- ( ـــ خ + ط )( ف تر ،اس، مذ ، ج ـــ ونه ) د خط ( ليک ) يو پخوانے قسم چې د مېخ د سر په شان شکل په ښتو ليکلے کېدهٔ ـ

**ـــ غابښ** : هغه غابښ چې د سرو زرو مېخونه د ډول دپاره پرې وهلے شوي وي ـ

ع مېخي غابښ په مسي تور عشوه پردازې (خوشحال)

**ـــ غابښ** :- ( ـــ غا + خ / ش )( پ ، تر ، اس ) هغه غابښ يا غابښونه چې په کښې د ډول دپاره د سرو زرو مېخونه لګولے شوي وي ـ

عجب سرې په پاڼو شونډې ورته خاندي
مېخي غابښ په مسي تور عشوه پردازې (خوشحال)

**ـــ ليک** :- ( ـــ لي + ک )( فپ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه )(و ـــ مېخي خط ) ـ

**مېدان** :- ( مي + دا + ن )( ف اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د زمکې يوه لويه هواره ټکړه ، ډاګه، ساحه ، د زمکې هغه ټکړه چې ونې بوټي په کښې نهٔ وي ـ د افريدو د يوې علاقې نوم ـ

**ـــ بېلل** :- بازي بېلل ،ماتې کول ، شکست خوړل ، لوبه بېلل ـ

**ـــ پرېښودل** :- تښتېدل ، ماتې کول ـ

**ـــ ته را ايستل** :-

**ـــ تـه راوباسـل** :- د مقابلې مېدان تـه ور وړانـدې کـول ، دمقابلې دپاره ورمخکښې کول ـ ښکاره کول ، څرګندول ـ وړاندې کول ، پيشي کول ـ

**ـــ ته راغورزول** :- ( ـــ ت + را + غ + ر + ز + و + ل )(و ـــ مېدان ته را ايستل ) ـ

**ـــ ته راوتل** :- مقابلې دپاره وړاندې راتلل ، دمقابلې مېدان تـه ورمخکښې کېدل ، ښکاره کېدل ، څرګندېدل ـ

**ـــ ته کول** :- د مقابلې دپاره مېدان ته راوښکل ، راښکاره کول ، څرګندول ـ وړاندې کول ، پېش کول ـ

**ـــ ته وتل** :- ( ـــ ت + و + ت + ل )(و ـــ مېدان ته راوتل ) ـ

**ـــ خالي کول** :- (و ـــ مېدان پرېښودل ) ـ

**ـــ چغالي کېدل** :- په مېدان کښې د مقابلې سړے نهٔ ,,بودل ،، مېدان چاته خالي ,, بودل ،، لکه : اوس هغه ته مېدان چغالي شو ـ ( ف : ميدان شغالي شدن ) ـ

**ـــ دتورو** :- د جنګ مېدان ، جنګرېز چې تورې په کښې وهلے شي

ع د تورو په مېدان کښې چې سودا وي د سرونو (خوشحال)

**ـــ ښائسته** :- ( ـــ ښا + ئې + س + ت )( فپ تر ) هغه سړے چې هسې په خبرو مجلس ګرمه وي ـ عملاً د څهٔ کولو جوګه نهٔ وي ـ

**ـــ ګټل** :- بازي ګټل ، برے وړل ، ګټه کول ، فتح موندل ـ

**ـــ وړل** :- په مقابله کښې ګټه کول ، مېدان ګټل ـ

چې له ښو ښو مړونو د مېدان يوړ
شـابه شـابه د حميد فکره تورزنه (حميد)

**په ـــ راپرېوتل** :- په ډاګه راغورځېدل ـ داسې ځاے کښې راغورځېدل چې هلته ختې وغېره نهٔ وي ـ غېر متوقع طور سره نقصان موندل ـ

**د جنګ ـــ** :- ( د + ج + ن +ګ ـــ )( فپ تر ،اس، مذ ، ج ـــ ونه ) هغه علاقه چې په کښې فوځونه په خپله کښې جنګ کوي ـ

**د جهازونو ـــ** :- ( د ، ج + ها +زو +نو ـــ )( فپ، تر، اس، مذ ، ج ـــ ونه ) هغه لويه پخه ډاګه چې هوائي جهازونه پرې خېژي او کوزېږي ـ هوائي اډه ، ائيرپورټ ـ

**دلوبو ـــ** :- ( د + لو + بو ـــ )( ف پ تر ، اس، مذ ، ج ـــ ونه ) د لوبو کولو مېدان ، هغه شين مېدان چې فټ بال ، هاکي وغېر لوبې کولے شي ـ ( انګ : پلے ګراؤنډ ) ـ

**مرد ـــ** :- ( م +ر + د ـــ )( ف تر ، صف ) د مېدان مېړهٔ ،بهادر ، توريالے ، مېړنے ، جنګيالے ـ

**مېداني** :- ( مي +دا + ني )( ف تر ،صف ) مېدان سره تعلق لرونکے ، مېدان ته منسوب ـ ښکاره څرګند ، په مخکښې د وړاندې ـ

**ـــ علاقه** :- ( ـــ ع + لا+ ق ) هغه ملک چې هواره ډاګه وي ـ غرونه غونډۍ

په کښې نئ وي.

**ـــــ کول** :- مېدان ته راوښکل ، د مقابلې دپاره مېدان ته راوستل . په ډاگه کول ، ښکاره کول ، څرگندول.

**ـــــ کېدل** :- مېدان ته ورکوزېدل ، د مقابلې دپاره مېدان ته وتل . څرگندېدل ، ښکاره کېدل ، په ډاگه کېدل.

**مېدول** :- ( مې +د+ و + ل )( و ـــ مېده کول ).

**مېده** :- ( مې +د )( اس ، مو ، ج ــــ دې ) باريک اوړه کړے ، پوډر کړے . نرې اوړهٔ کړے او چڼ کړے اوړهٔ.

**ـــــ اوړهٔ کول** :- ډېر نرې اوړهٔ کول ، پوډر ترې جوړول.

**ـــــ حروف** :- ( ـــح + رو + ف )( ف ، تر ، اس ، ج ) ډېر نرې (واړهٔ واړهٔ ) حرفونه.

**ـــــ فروش** :- ( ـــف + رو + ش )( ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــان ) مېده اوړهٔ خرڅوونکے.

**ـــــ کول** :- مېده جوړول ، نرے او مهين اوړهٔ کول ، پوډر جوړول.

**ـــــ مېده کول** :- ډېر نرے اوړهٔ کول ، پوډرې ترې جوړول.

**ـــــ کېدل** :- نرې اوړهٔ کېدل ، پوډر جوړېدل.

**ـــــ مېده** :- ( ـــــ مې + د )( ف تر ، صف ) ډېر زيات مېده شوے ، باريک مهين شوے.

**ميدي** :- ( مي + دي )( اس ، مع ) د ،،ميد،، سره تعلق لرونکے ،،ميد،، ته منسوب. ميد يا ميډ د يو قوم نوم دے اوميډيا ئې د علاقې نوم دے.

**ـــــ اقوام** :- ( ـــــا + ق + وا+ م ).

**ـــــ قامونه** :- ( ـــــقا + مو + نَ ).

**ـــــ قومونه** :- ( ـــقو + مو + ن ) د ميډيا د علاقې اوسېدونکې.

**مېډل** :- ( مې / م + ډ + ل )( انگ ، اس ، مذ ، ج ـــونه ) مېډال ، تمغه ، نښان

**ـــــ اخيستل** :-

**ـــــ گټل** :- تمغه گټل ، په کوم مقابله کښې اول راتلل ، د مېدان د گټلو تمغه اخيستل. د کوم اعلیٰ او غوره کار د کولو د مننې په طور د سرو زرو يا سپينو زرو نښان اخيستل.

**ـــــ ورکول** :- د کوم غوره او اعلیٰ کار د مننې په طور تمغه ورکول.

**مېډلسټ** :- ( م + ډ + ل + س + ټ )( انگ ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــه ) مېډل اخستونکے ، تمغه اخستونکے ، تمغه يافته.

**گولډ ـــــ** :- ( گو + ل + ډ ــــ )( انگ ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــه ) د سروزرو تمغه اخيستونکے ، هغه سړے چې په کوم کار يا فن کښې اول راغلے او تمغه ئې اخستې وي. دسرو زرو تمغه لرونکے.

**مېډم** :- ( مې + ډَ / ډِ + م )( انگ ، اس ، مو ) عزتمنې ښځې ته د خطاب په وخت وئيلے شي. دعزت يو خطاب ، بي بي ، بيگم صاحبه ، خانم ، بانو.

**مېډيسن** :- ( م + ډي + س + ن )( انگ ، اس ، مذ ) دارو ، دوائي ، خصوصاً د نوې طب داروگان چې په ايلوپيتهي طريقې په علاج کښې پکارولے شي. انگريزي دارو.

**مېډيکل** :- ( مې + ډي + ک + ل )( انگ ، صف ) مېډيسن سره تعلق لرونکے ، طب سره تعلق لرونکے ، طبي.

**ـــــ سټور** :- ( ـــــس + ټو + ر )( انگ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــونه ) هغه ځاے چېرته چې د جديد طب سره متعلق څيزونه (دوائياني ، اوزار وغېره) کښېښودے شي. د انگريزي دوائيانو دوکان.

**ـــــ کالج** :- ( ـــــ کا + ل + ج )( انگ تر ، اس ، مذ ، ج ـــونه ) هغه لويه درسگاه چې په کښې د نوي طب سبق ښودلے کېږي . ( په دې کالجونو کښې عموماً د ،،ايلوپيتهي،، د طرز طب تعليم ورکولے کېږي ).

**ميډيم** :- ( مي + ډ+ ي + م )( انگ ، اس ، مذ ) ذريعه ، وسيله ، د مېنځ درجې ، اوسط ، درميانه.

**انگلش ـــ** :- ( ا + ن + گ + ل + ش ـــ )( انگ تر ، صف ) انگريزي ذريعه ، د تعليم هغه مدرسه چې په کښې ټول مضامين په انگريزي کښې ښودلے کېږي.

**مير** :- ( مي+ ر )( اس ، مذ ، ج ـــان ) مشر ، سردار ، سيد د لوېې د ډلې مشر ، د نارينه ؤ په نومونو کښې استعمالېږي.

**ميراث** :- ( مي +را+ث ) ميراث ، هغه سړے چې اولاد يې نه وي او جائيداد ئې بل ته ملاؤ شي.

پـــه هـــر چـــا ده ودانـــې عبدالعظيمـــه
خـو يـو تـهٔ شـوې پـه دې خلقـو کښـې ميـراث

**ـــــ کول** :- تباه کول ، دچا کور ورانول.

**ـــــ مړے** :- تباه او برباد ، دا لفظ عموماً چې څوک غصه شي نو د ښيرو په وخت وائي.

غېر له دې اصلي حاجته غم دے دنيا واړه
پيټے پرې درنېږي ډېره مه شه ميراث مړے (حافظ)

**مير بابا** :- د اورنگزېب عالمگير يو سردار چې په بنارس کښې حاکم وهٔ.

سيد مير او ميربابا دواړه حاضر دي
کـــه دد ې خبـــرې غواړې استدلال (خوشحال)

**مير باز** :- دخوشحال خان خټک د ورور نوم.

ع د مير باز غوندې ورزغله د خوشحال غوندې ترې ښتنه

**ـــــ بخش** :- لوے بخشي ، د ټول سلطنت تنخواه تقسيم کونکے.

افـــرين دميرجملـــه په زويه باندې
چې نن دےدے ميربخشي په استقلال (خوشحال)

**ميربلوگے** :- ( مي + ر +ب + لو + گے )( اس ، مذ ، ج ـــگي ) د زيړ رنگ يوه مرغۍ

**مېرټ** :- ( مې / م + ر + ټ )( انگ ، اس ، مذ ) استحقاق ، وړوالے ، لياقت ، ارزښت.

**په ـــــ** :- ( پ ـــ )( انگ پ تر ، تف ) په اهليت ، په قابليت ، په وړ والي.

**ميرځړے** :- ( مي + ر + (د) ز + ړے )( اس ، مذ ، ج ـــ ړي )( و ـــ ميزړے ).

**ميرڅمن** :- ( مي + ر + (ت)س + م+ن )( اس ، مذ ، ج ـــ ان ) دښمن ، دښمن ، عدو

**ميـرخن** :- ( مـي + ر + (ت) س + ن )( اس ، مـذ ، ج ـــان ) دښمن ، دښمن ، عدو.

**مېرڅي** :- ( مې + ر + (ت) سي ).

**ميرڅي** :- ( مي + ر + (ت) سي )( اس ، مو ) دښمني ، عداوت.

چې د سترگو ئې تقویٰ سره ميرڅي ده
پـــه ناحقـــه ئې نيولې پارسائي ده (خوشحال)

**ـــــ کول** :- دښمني کول ، عداوت کول.

**مېرڅے** :- ( مې + ر + (ت) سے )( ا س ، مذ ، ج - څي ) دښمني ، دښمن ، عدو.

**ميرڅيړے** :- ( مي + ر + (ت) سے + ړے )( اس ، مذ ، ج - ړي )( و - ميزړے ).

**ميرحسني** :- ( مي + ر + ح + س + ني )( اس ، مع ) د مچاخېلو څانگه ده . (مچاخېل ، مده خېل ، ابراهيم خېل ، اتمان زي ، درويش خېل ) وزير دي.

**ميرخاني** :- ( مي + ر + خا +ن+ئ )( اس ، مع ) د کيکرئيو څانگه ده . ( کيکر د نانا خېل ، بهلول زئي ) محسود دي.

**ميرداد کور** :- ( مي + ر+دا+ د + کو+ ر )( اس ، مع ) د بازيد خېلو څانگه ده . ( بازيدخېل ، شېخان ) د اورکزئيو همسايه دي.

**ميرزا** :- د روښاني تحريک سره متعلق د پښتو ژبې يو مشهور صوفي شاعر.

**ميرزئ** :- ( مي + ر + ز + ي )( اس ، مع ) د مهتر زئيو څانگه ده . ( مهتر زي ، هارون خېل ، سناټيه ) کاکړي دي.

**ميرزئ** :- ( ددغه )( اس ، مع ) د کانسيو څانگه ده.

**میرزئ** :- (ددغه) (اس ، مع) د صافیو څانګه ده ـ پښې دي ـ
**میرزئ** :-(ددغه)(اس ، مع) د بابړو څانګه ده ـ
**میرزئ** :- (ددغه)(اس،مع) د علي زئیو څانګه ده ـ (علي زي ، سنزرخېل) کاکړ دي ـ
**میرسان خېل** :- (مي+ر+سا + ن +خې + ل)(اس،مع) د بخشي خېلو څانګه ده ـ (بخشي خېل، مده خېل ، ابراهیم خېل و اتمانزئ ، درویش خېل) وزیر دي ـ
**میرسعیدخېل** :- (مي+ ر+ س + عي+ خې+ل)(اس، مع) د سنزل خېلو څانګه ده ـ (سنزل خېل ،کمال خېل ، صاحب جان ، اکاخېل) افریدي دي ـ (بله شجره کښې سنزل خېلو ته سانیال خېل هم لیکلي دي ـ دا بـه ئې بل نوم وي ـ اومیر سعید خېل په ځای میر سید خېل لیکلی دی ـ او همدا درست ښکاري ـ (بخاري) ـ
**میرسپد کور** :- (مي +ر+سې + د+ کو+ ر)(اس ، مع) د حسن خېلو څانګه ده ـ دویزي مهمند دي ـ
**میرعزیز خېل** :- (مي+ر+ع +زي+ ز + خې+ل)(اس ، مع) د بر محمد خېلو څانګه ده ـ (بر محمد خېل ، محمد خېل) اورکزي دي ـ
**میر علي زئ** :-(مي +ر+ ع + لي +ز + ئ)(اس، مع) د نور زئیو څانګه ده ـ ابدال ترین دي ـ
**میرعلي خېل** :- (مي +ر + ع + لي + خې +ل)(اس،مع) د ایدیا خېلو څانګه ده ـ (ایدیا خېل ، جاني خېل ، ولي خېل، اتمان زئ ،درویش خېل) وزیر دي ـ
**میرعلي خېل** :- (مي +ر + ع + لي + خې +ل)(اس ، مع) د حیدر خېلو څانګه ده ـ مندو خېل دي ـ
**میرعلي خېل** :- (ددغه)(اس،مع) د بزو تیبو څانګه ده ـ (بزوتي ،دولت زئي) اورکزي دي ـ
**میرعلي خېل** :- (ددغه)(اس ، مع) د ابراهیم خېل،علي کران ،ماموزئ، لشکر زئ) اورکزي دي ـ
**میرعلي خېل** :- (ددغه)(اس،مع) د ازي خېلو څانګه ده ـ (ازي خېل ،برسولیزئ ، مائیزئ ، اکوزي) یوسفزي دي ـ
**میرعلي خېل** :- (ددغه) (اس ، مع) دمیرکلان خېلو څانګه ده ـ (میرکلان خېل ، ماموزئ ، لشکر زئ) اورکزي دي ـ
**میرک خېل** :- (مي + ر+ک+ خې + ل)(اس،مع) د اتمانزئیو څانګه ده ـ کوچي مهمند دي ـ
**میرک کور** :- (مي+ر+ک + کو + ر)(اس،مع) د داؤد خېلو څانګه ده ـ (داؤد خېلو څانګه ده) (داؤد خېل ، کډئ کور ، حلیم زئ) مهمند دي ـ
**میرکلان**:- د ختکو په سیمه د یو کلي نوم دی ـ

لامنت لرم په دا هم له اسمانه
تنداره د اباسیند له میر کلانه (خوشحال)

**میرکلان خېل**:- (مي +ر+ک+لا+ن+ خې+ل)(اس ، مع) د درې پلارو څانګه ده ـ (درې پلارو خسروګي ، نصرالدین، زخاخېل) افریدي دي ـ
**میرکلان خېل**:- (مي+ر+ک+ لا+ ن + خې+ل)(اس،مع) د موسٰی خېلو څانګه ده ـ (موسٰی خېل ، ماموزئ ، لشکر زئ) اورکزي دي ـ
**میرکلي خېل** :- (مي +ر+ک+ لي+ خې +ل)(اس،مع) د بزوتیو څانګه ده ـ (بزوتي، دولت زئ) اورکزي دي ـ
**میرګاټي** :- (مي + ر +ګا + ټي)(اس ،ج) غونډ کړي پلن کاڼي ، چې جینکۍ ورسره لوبې کوي ـ غونډ کړي ټیکري هم وي او ځینې وخت ورو ورو کاڼو سره هم کولی شي ـ
**ــــ کول** :- د جینکو میرګاټو سره لوبې کول ـ

**میرګل** :- (مي + ر +ګُ + ل)(پ تر ،اس ، مذ ،ج ــــونه) د نمرپرست ګل ـ
**میرګل خېل** :- (مي+ر+ ګ+ل + خې +ل)(اس، مع) د سکندر خېلو څانګه ده ـ (سکندرخېل،بادیوئي ، خلي خېل سمن خېل) محسود دي ـ
**مېرګن** :-(مې + ر + ګ + ن)(اس ،مذ ، جــــان) جوړیان ، یو ښکاري مارغه دی ـ دا اصلاً جوړئ وي ـ یو ځای په شریکه ښکاري کوي ـ په فارسي کښې ورته ځکه مرغ دو برادر وائي ـ
**مېرګن** :- (مې + ر +ګ + ن)(صف ، مذ ،موــــه) د ,, مرګي ،، د مرض مریض، مرګي واله ـ
**میرګنجې** :- (مي + ر +ګ + ن + جې)(اس ،مذ ، جــجي) سرکل کړی ، لبندا ، پک
**میرګنځ** :- (مي + ر + ګ+ ن (د) ز)(و ــــ میرګن) ـ
**میرګي** :-(مي + ر + ګي)(اس،مو) د یو دماغي مرض نوم دی ـ چې په کښې سړی بیهوشه شي او پرې ووزي او د خولې نه ئې ځګ ووزي ـ
**ـــــ راتلل ، په چا** :- د میرګي د مرض حمله کېدل ـ
**میرګیانی** :- (مي + ر + ګ + یا + نی)(اس،مذ ،جـــني) د میرګي د مرض مریض، مرګي واله
**میرګیان** :- (مي+ر +ګ + یا + ن)(اس،جم) مېرګي ، مرګي ، ډکه ، (مشهور مرض دی) (ع : صرع) ـ
**میرګیانۍ** :- (مي+ر+ګ+ یا+ن+ ۍ) د ,, میرګیانی ،، تانیث دی ـ
**میرل** :- (مي + ر + ل)(مص) ځای نیول ، په ځای قبضه کول ـ
**میرم شاه** :- (مي + ر+ م + شا (ه)(اس،مع) د تپي زادو څانګه ده ـ دوړ دي ـ د میرم شاهو څانګې دادي ـ بدا خېل او رتمن ـ
**میرم خېل** :- (مي+ ر +م + خې+ ل)(اس ، مع) د ژاوخېلو څانګه ده ـ (ژاؤ خېل ، تاپیاتي ، تپي زاد) دوړ دي ـ
**میرمان خېل** :- (مي +ر+ما+ ن+خې+ل)(اس،مع) د ,, دوصل ،، څانګه ده ـ (دوسل / دوصل ،ووزي خېل ، مهمت خېل ، اتمانزئ ، درویش خېل) وزیر دي ـ
**میرملنګې** :- (مي + ر + م+ ل+ ن+ ګې)(اس،مذ ، جـــــګي) دو رنګې هندوانه ، برګه هندوانه ـ
**مېرمن** :- (مې + ر +م + ن)(اس،مو،جــنې) د کور مالکه ، د کور مشره ، د مشرې ښځې دپاره د عزت لقب دی ـ خانم ، بېګم ـ
**د کورــــ** :- (د ، کو+رـــ)(پ تر ،اس ، مو ، جــــنې) د کور مالکه ، د کور مشره ، ښځه ، د کور د مالک ښځه ـ لکه : اور له راغلې د کور مېرمن شوې ـ (متل) ـ
**ـــــ توب** :- (ـــــتو + ب)(پ تر ،اس، مذ) مېرمن والی ، د مېرمنې کار یا کېفیت
**ـــــ غئیل** :- (ــــــ غ + ئ + ل) کنځل دي ، مېرمن سره بدکاري کول ، مجازاً : د کوم ځیز په حقله د کرکې یا د غصې د ښکاره کولو دپاره استعمالېږي ـ
لکه : مېرمن ئې وغېم ـــ
**ـــــ کېدل** :- مالکه کېدل ، مجازاً : وادۀ کېدل ، د کور مالکه کېدل ـ
**میرمنتېک** :- (مي + ر + م +ن+ تې +ک)(اس،مذ) یو قسم بوټی دی ـ چې د سپرلي په سر کښې پیدا کېږي ـ تریخ وي ـ زېړ ګلونه کوي ـ
**میرمنډک** :- (مي + ر + م + ن + ډ +ک)(اس،مذ) د یو قسم ازغن / اغزن بوټي نوم دی چې د کیکر په شان خړ رنګې ازغي / اغزي لري ـ
**مېرمنه** :- (مې +ر + م + ن) د ,, مېرمن ،، بدل شکل دی ـ همدغه معنې ورکوي
**مېرنۍ** :- (مي +ر + ن + ئ) د ,, مېرنی ،، تانیث دی ـ

**ـــــ مور** :- (ـــــ مو + ر)(پ تر ، اس ، مو) ناسکه مور ، د پلار هغه ښځه چې خپله مور نۀ وي.مېره لور ، مېره.

**ميرو** :- (مي + رو)(اس ، مع) د داسې نوم بدل (سپک) شکل دے چې په کنبې د ,,مير،، لفظ راځي. ميرے.لکه: مير محمد ، مير خان.

**ميرواړ** :- (مي + ر + وا + ړ)(اس، مذ) ناز نخره ، کېځ مکېځ.

**ـــــ کول** :- ناز نخرې کول ، کېځ مکېځ کول.

**ميروب خېل** :- (مي + رو + ب + خې +ل)(اس ، مع) د طاؤس خېلو څانګه ده . (طاؤس خېل ، پېر باخېل ، هاتي خېل،سين خېل ، احمدزئ ، دروېش خېل) وزير دي.

**ميروزئ** :- (مي + رو + ز + ئ)(اس ، مع) د مهترزئيو څانګه ده . (مهترزئ ، هارون خېل ، سناتيه) کاکړ دي.

**ميروېس** :- (مي + ر + وې + س)(اس، مع) د پښتنو د يوغور نيکۀ نوم دے.

**ميروېس خېل** :- (مي+ر+ وې + س + خې +ل)(اس ، مع) د پنج پائيو څانګه ده. (پنج پائي،موسیٰ خېل ، نوري زئ، مليزئ) بنېروال دي.

**ميره** :-(مي + ر)(اس، مو، ج ـــ رې / انې) د ,, مير ،، تانيث دے.

**مېره**:- د حضرت خديجې بي بي رضؓ د غلام نوم دے.هر کله چې حضورصلعم ددغې بي بي د تجارت مال شام ته يووړ.نو مېسره ورسره ووه.هغه د حضور صلعم د اخلاقو کمال وليد .او چې پستنه راغلل نو خپلې بي بي ته ئې تول حال ووے.

**ميري** :- (مي + ري)(ف ، اس ، مو) سرداري ، مشري ، افسري ، سيادت ، سيدګيري.

**ميرئ** :-(مي + ر + ئ)(و ـــ ميري).

**ميرے** :- (مي + رے)(و ـــ ميرو).

**ـــــ ګانې** :- (ـــــ ګا + نې) د ,, مېره ،، جمع ده.مېرے.

**ميري خېل** :- (مي+ري+خې + ل)(اس ، مع) د ,,لنډ ،، څانګه ده . (لنډ ، ملخ ، ملي زاد) دوړ دي.

**ميري خېل** :- (ددغه)(اس ، مع) د سورن خېلو څانګه ده . (سورن خېل ، بابکري، سپاه) افريدي دي.

**ميريزتوب** :- (مي + ري + ز+ تو + ب)(پ تر،اس،مذ) مېرنې والے ، ناسکه والے.

**مېرېزے** :- (مې + رې + زے)(پ تر، صف ،مذ ، ج ـــ زي / ان) مېرنے ، ناسکه.

**مېړۀ** :- (مې + ړ)(اس،مذ ، ج ـــ ونه) خاوند ،څښتن ، تښتن .لکه کونډه چې مېړۀ کا ، د وخته ئې ولې نۀ کا .(متل).

بهادر ، توريالے ، ځوانمرده.

مېړۀ مـه کـړه ، مېړانه ئې مه ورکوه! (متل).

**دقلمـــــ** :- (د ، ق + ل + م ـــ)(پ تر ، اس ، مذ) د قلم خاوند ،ليکوال ، اديب .

**ـــــ مخے** :- (ـــــ م + خے)(پ تر، صف) د مېړونو په شان مخ لرونکے ، مجازاً : بهادره ، زړۀ وره ښځه.

**ـــــ کول** :- خاوند کول ، وادۀ کول.

**ـــــ توب**:- (ـــــ تو + ب)(پ تر ، اس ، مذ) بهادري ، توره ، شجاعت ، مړانه.

**مېړنتوب** :- (مې + ړ +ن + تو+ب)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) بهادري ،شجاعت ، توره ، مړانه.

**مېړنۍ**:- (مې + ړ + ن + ۍ) د ,, مېړنے ،، تانيث دے.

**مېړنے** :- (مې + ړ + نے)(پ تر،اس،مذ، ج ـ ني) بهادر، شجاع ، توريالے ، مړنے

**مېړوخه** :- (مې + ړو +خَ)(و ـــ مېړوښه).

**مېړوښه** :- (م + ړو + شَ)(و ـــ مېړوښه).

**مېړوښه** :- (مې + ړو + خَ / شَ)(اس،مو ، ج ـــ ښې) د شته مېړۀ ښځه ، هغه ښځه چې خاوند ئې ژوندے / جوندے وي.مړوښه.

**مېز** :- (مې + ز)(اس،مذ ،ج ـــ ونه) هغه پلنه تخته چې څلور پښې لري او په دغه تخته باندې مختلف قسمه کار کولے شي .لکه ډوډۍ پرې خوړے شي.خط وغېره پرې ليکلے شي.

**دليکلو ـــــ** :- (د ، لي + ک + لو ـــــ).

**دليکـــــ** :- (د ، لي + ک ـــ)(پ ، تر،اس، مذ ، ج ـــ ونه) هغه لويه چوکۍ چې خط وغېره د ليکلو دپاره پکارولے شي.

**دخوراکـــــ** :- (د ، خُ + را + ک ـــ)(پ تر ،اس،مذ ،ج ـــ ونه) د ډوډۍ د خوړلو مېز ، چې يو څو کسان ترې چاپېره په کرسو باندې کښېني او ډوډۍ خوري.

**ـــــ پوش** :- (ـــــ پو+ ش)(ف تر،اس،مذ ، ج ـــ ونه) هغه کپړه چې په مېز باندې غوړولے شي.

**ـــــ دار** :-(ـــ دا+ر)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) مېز لرونکے ، لکه: مېز داره کرسۍ.

**ـــــ ګوټے** :-(ـــ ګو + ټے)(اس ، مذ ،ج ـــ ټي) د ,, مېز ،،تصغير دے.وړوکے مېز.

**غونډـــــ** :- (غ + ن + ډ ـــ)(پ تر ،اس،مذ) هغه لوے مېز چې په شکل غونډ (مدور) وي او ګڼ کسان ترې چارچاپېره د کومې صلاح مصلحت دپاره کښېناستے شي.

**مېزان** :-(ع ،اس ، مذ ، ج ـــ ونه/ موازين) تله ،ترازو ، د اسمان اووم برج.

نـۀ د دوست نـۀ د دښمـــــن سپکاوے وائي
څوک چې خداے د دۀ درونډ کړے تول مېزان دے (حافظ)

**ـــــ لګول**:- جمع لګول ، ټوټل معلومول.

**په ـــ کول** :- تلل ، تول اخيستل ، وزن معلومول ، جاج اخيستل.

**ميزان** :-(مي + زا + ن)(اس ،مذ ، ج ـــ ونه) جمع ، د مختلفو اعداد و جمع ، ټوټل.

**ـــــ الحراره** :- (ـــ ح+ را + رَ).

**ـــــ الحرارت** :- (ـــــ رَ + ت)(ع ،تر،اس ، مذ) د ګرمۍ د اندازې لګولو اله ، تهرماميټر.

**ـــــ الهوا** :- (ـــ ن + ل + هـ + وا)(ع، تر،اس،مذ) د هوا د دباؤ د معلومولو اله.بېروميټر.

**ميزانه** :- (مي + زا+نَ)(ف،اس،مو)(موسيقي) د موسيقۍ تال.

**ـــــ غږول** :- د موسيقۍ د وزن د صحيح لرلو دپاره تال ورکول.

**ميزانيه** :- (مي + زا + ني +ي)(عف ، تر،اس، مو) بوجه ، بجټ ، د کال د خرڅ جمع ، د يو ملک د پوره کال د حساب تخمينه.

**تجارتي ـــــ** :- (ت + جا+ ر + تي ـــــ)(عف ، تر ، اس ، مو) تجارتي بوجه ، تجارتي بجټ.

**ميزائيل** :- (مي+ زا + ئ + ل)(و ـــ ميسائيل).

**مېزبان** :- (مې + ز+ با + ن)(ف تر،اس ، مذ ، ج ـــ ان) د ډوډۍ د مېز انتظام کوونکے ، مجازاً : کوربه ، د کور خاوند ، د مېلمه پالونکے.

**مېزباني** :- (مې + ز+ با + ني)(ف تر،اس ،مو) کوربه توب ، د مېلمنو پالنه.

**ـــــ کول**:- کوربه توب کول ، د مېلمه يا د مېلمنو پالنه کول.

**مېزر**:- (مې+ ز+ ر)(اس ، مذ ،ج ـــ ونه) نقاب ، مخ پټونے ، پروڼے ، څادر.

بادشاه قطب اقطاب دي امراګان چې ورته ګرځي
کـــرې خېـــرې ترلې و د هـــر چا په سر مېزر شته (خوشحال)

**ميزر** :- (مي + ز + ر)(ع،اس،مذ ، ج ـــ ونه) پرتوګ، پاجامه.

**ميزر** :- (مي + ز + ر) (اس،مذ ، ج ــونه) انبارخانه ،د غلې ګودام.
**ـــــ په سرول** :- پړونې په سرول ، زنانه څادر په سر اخيستل.
**ميزرے**:- (مې + ز+رے) (اس، مذ ، جـــــري) مشهور ريشه داره ګياه چې بوڼ پړي وغېره ترې جوړولے شي.
**غونډ ـــــ جرګه**:- (ـــج + ر + ګَ ) (پ تر ،اس ، مو ، ج ـــګې) هغه مشورتي جرګه چې د غونډ ميز نه / څخه چاپېره کښېني او صلاح مصلحت کوي. (انګ :راؤنډ ، ټي بل، کانفرنس).
**ميزماني** :- (مي +ز+ما +ني) (وـــ ميزباني).
**ميزوب** :- (مي +زو+ب) (اس،مذ،ج ـــان) مجذوب ،لېونے . هغه چې دخپل ځان او جهانه خبر نۀ وي. (اصلاً د مجذوب بدل شکل دے).
**مېزوبه** :- (مي + زو + ب) (اس ، مو ، ج ـــبې) د ,,ميزوب،، تانيث دے.
**مېزوبه** :- (مي + زو + بَ) (اس ، مو، جـــبې) د ,,مېزوب ،، تانيث دے.
**مېزوب** :- (مي + زو + ب ) (اس،مذ ، جـــان) مجذوب ، لېونے ، هغه چې د خپل ځان او جهانه خبر نۀ وي. (اصلاً د مجذوب بدل شکل دے).
**مېزے** :- (مې + زے) (پ تر، صف) مېزسره تعلق لرونکے.
**مېږ** :- (مي +ژ / ک) (اس،مذ ، ج ـــمېږان) مږ، ګډ.
**ـــــ تانه** :- (ـــــتا + ن) (وــــــمېږتون).
**مېږتون** :- (مي +ګ /ژ + تو + ن) (اس،مذ ، جـــــونه) هغه ځاے چېرته چې مېږي اوسي .هغه ډېــــرګۍ چې ترې لاندې ئې د مېږو سوړې وي. يو خاص قسم بناتک چې چاپېره په کښې داوبو ځاے وي او په مېنځ کښې ئې لوړ ځاے دخوراک د لوښي د کښېښـودلو دپـاره جـوړ شـوےوي . چاپېره د اوبو په وجه مېږي د خوراک لوښي له نشي ورتلے.
**په ـــــ شپه** :- (پَ ـــــش + پ).
**د ـــــ شپه** :- (د ـــــش + پ) د اضطراب او بې ارامۍ شپه. ډېر د تکليف او مصيبت وخت.
**مېږتره** :- (مي + ګ / ژ+ ت + ر) (اس ، مو) نيم ويلے شوي غوړي.دانه دار.
**مېږ کمار** :- (مي + ګ/ژ+ک +ما+ ر) (پ تر،اس ،مذ ،ج ـــان) د منرکانو وژونکے ، نولے، سربڼے.
**مېږکۍ** :- (مي + ګ/ ژ + ک+ ى) (اس ، مو) يوه مرغۍ ده چې مېږي خوري. مېږي خوره مرغۍ.
**مېږوے**:- (مي + ګ / ژ+ وے) (اس،مذ ، ج ـوي) (و ـ موږے).
**مېږه** :- (مي + ګ/ ژ) (اس،مو،ج ـــــږي) د ,, مږ ،، تانيث دے ، ګډه.
**مېږي** :- (مي + ګي / ژي) د ,, مېږے ،، جمع ده. د ,,مېږي،، بدل شکل چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.
**ـــــ اخته کېدل ، په چا** :- مجازاً د حد نه زيات تادي او جلتي ,,بودل ،،.
**ـــــ راولاړېدل ، په چا** :- (و ـــــ مېږي اخته کېدل په چا).
**ـــــ مېږي کېدل ، بدن** :- د بدن په کومه حصه کښې بې حسي پېدا کېدل ، لاس و پښې وغېره اودې کېدل.
**د ـــــ پل وهل** :- د مېږي په رفتار تلل. ډېر ورو ورو تلل.
**سرۀ ـــــ** :- (س + ر ـــــ) د ,, سور مېږے ،، جمع ده.
**مېږي** :- (مي + ګي / ژي) يا (مے + ګے / ژے) (اس ، مذ ) د هلکانو لوبه ، ګډې او زمرے.
**مېږۍ شړۍ** :- (مي + ګ / ژ + ى + ش + ړ+ى) (اس ،مو) يو قسم اغوستنه چې په رېښمو او طيلې سره پرې نقش شوےوي.
**مېږېمه** :- (مي + ګ/ ژې + مَ) (اس، مو، ج ـــــمې) د ګډې ګرمېدنه ، د ګډې د نر طلب.
**مېږے** :- (مي + ګ / ژے) (اس مذ ، ج ـــــان) مشهور وړوکے شان چينجے چې د خوراک څيزونو او نورو سخا شوي او مړو څيزونو ته راجمع شي. په سوړو کښې اوسي او خوراک هلته ذخيره کوي. مجازاً چست چالاک ونړے نړوچکے او محنتي سړے.
**تور ـــــ** :- (تو + ر ـــــ) (پ تر،اس،مذ ، ج ـــــړي) هغـه عـام مېـږي چې رنګ ئې تور وي.
**سُور ـــــ** :- (سو + ر ـــــ) (پ تر،اس، مذ ) د مېږيو يو قسم چې سور غوندې رنګ لري. او د تورو عام مېږو نه واړۀ وي.
**غټ ـــــ** :- (غ + ټ ـــــ) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ږي) د تورو مېږو يو ډېر غټ قسم. چې عموماً صحرا يا پټو وغېره کښې وي.
**مېس** :- (م + س) (انګ ،اس ، مذ ،ج ـــــ ونه) خوراک، طعام ، پېنډه، هغه طعام کوم چې فوځي افسران يوځاے ناسته خوري.
**ميست** :- (مي + س + ت) (و ـــــ ميشت).
**ميسر** :- (م + ي + س + سَ + ر) (ع ،اس ، مذ ، مو ـــــ ه) اسان کړے شۀ ، اسان کړے شوے ، هغه څيز چې په اسان لاس ته راځي يا راشي. حاصل شوے ، لاس ته راغلے. موجود.
**ميسر** :- (مُ + يَ + س + سِ + ر) (ع،اس،صف،مذ،مو ـــــ ه) اسـانوونکے . مهيا کوونکے
**ـــــ کېدل** :- حاصلېدل ، لاس له راتلل.دستياب کېدل.

خو خوشي دې دخپل يار ددېدن موم
کـــــه پـــه ويښه ميسر شي يا به خواب (خوشحال)

**مېسره**:- (مي + س + ر) (ع ،اس ، مو ، ج ـــــرې) د جنګ په مېدان کښې د فوځ هغه برخه چې ګس (کيڼ) لاس طرف ته وي.
**ميسريدل** :- (م + ي + سُ + سَ + ري + د+ل) (و ـــــ ميسر کېدل).
**ميسوزئ** :- (مي +سو + ز + ي) (اس ، مع) دغشےزئيو څانګه ده (غشے زئ ، اځک زئ) ابدال ترين دي.
**ميسه** :- (مي + سَ) (صف) نوے نوے راټوکېدلے فصل ، نوے فصل.
**ـــــ غنم** :- (ـــ غ + ن + م) د غنمو فصل چې نوے راټوکېدلے يعني لاوړوکے وي.
**مېسمېرزم** :- (م + س + مې + ر +ز + م) (انګ ، اس، مذ ) يو خاص عمل دے چې په دې باندې پـه بنيـادم باندې خوب طاري شي او بيا ترې پټ حال پوښتلے شي.
**مېسے** :- د يو افسانوي عاشق نوم چې په پينو مئين ؤ.

پينو پسې مېسي ځنګل پائمال کړ
د يار مينه په مئين قوت همت ردي (حافظ)

**مېش** :- (مې + ش) (ف ، اس) مېږ ، ګډ ،ګډه.
**مېشپلو** :- (مې + ش + پ + لو) (اس،مذ ) يو قسم بوټے دے چې اوږدې او مډې پاڼې لري. او سرۀ او سپين ګلونه کوي.
**ميشت** :- (مي + ش + ت) (صف ، مذ ، مو ـــــ ه) استوګن ، مقيم ،اباد.
**ميشتک** :- (مي +ش+ ت + ک) (اس،مذ ،ج ـــونه) وړه بوجۍ چې په کښې غنم جوار د اوړۀ کولو دپاره جرندې ته وړي.
**مېشته** :- استوګنه ، قيام.
**ـــــ کول** :- قيام کول.
**ـــــ کېدل** :- مېشتۀ نيول ،مقيم کېدل،قيام کول ، پاتې کېدل.
**ـــــ ,, بودل ،، قيام ,, بودل ،،** : عارضي استوګنه لرل، سکونت لرل.

ورځ ورباندې شپه ده په تورتم کښې ئې مېشته ده
کلـــــه بـــه ليدے شـــي د خوشحال د زړۀ څراغ (خوشحال)

**مېشتول** :- (مي + ش + ت + ؤ + ل) (مص) ميشت کول ، مقيم کول،ايسارول

، په دويم ځل اوړۀ اغړل (په اول ځل خوشتولو ته اغړل يا اخښل وائي) .

**مېشتون** :- (مې ش + تو + ن) (اس ،مذ ، ظر) د مېشت کېدلو ځائے ، د قيام ځائے . اوړۀ په دويم ځل اغړنه .

**مېشوانيې** :- (مې + ش + وا + نيې) (و ـــ مشوانيې) .

**مېشتېدل** :- (مې + ش + تې + د + ل) (مص) (و ـ ميشت کېدل) .

**مېشتے** :- (مې + ش + تے) (و ـــ مېشته) .

چې په کښې بانګ د مسجد امام نۀ وي
پـه هغه کلي کښې مېشتې مقام نۀ وي (خوشحال)

**مېشه** :- (مې + شَ) (پ ،اس ،مو ، ج ـــ شې) مېښه (د سنډا مؤنث) .

**مېشن** :- (م + ش + ن) (و ـــ مشن) .

**مېشي خېل** :- (مې + شي + خې + ل) (اس ،مع) د ختيـو ځانګـه ده . (ختمي ، تائب خېل ، عمزوني ،ملي زاد ) دوړ دي .

**مېښ** :- (مې + ښ) (اس ، صف ، مو ، ج ـــ ښې) بې تابه کېدل ،خواهش لرل .

**ـــ بانۀ** :- (ـــ با + ن) د "مېښ به" ، جمع ده .

**ـــ بنه** :- (ـــ ب + ن) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ ني) د "مېښ به" ، تانيث دے .

**ـــ کټې** :- (ـــ ک + ټ + ې) (پ تر ، اس ، مو) د مېښې ماده بچے ،کټې .

**ـــ کټے** :- (ـــ ک + ټے) (پ تر ،اس ، مذ ، ج ـــ ټي) د مېښې نر بچے ، کټے .

**ـــ مېښ کېدل** :- د زړۀ پـه مرض اختـه کېـدل ، د زړۀ درزېـدلو پـه مـرض ناجوړه کېدل . بې تابه کېدل ، خواهش لرل .

**مېښبه** :- (مې + خ / ش + بَ) (اس ، مذ) د مېښو ساتونکے او خرڅوونکے .

**مېښل** :- (مې + خ/ ش + ل) (مص) لاړ وهل ، مزل کول ،طې کول ،منبل .

د لحـد د خـاموشانو ئي سعيده
که د فش شعر و مېښ کهکشـان (سعيد)

**مېښنه** :- (مې + خ / ش + نَ) (پ تر ، صف ،مو ، ج ـــ ني) مېښينه ، د مېښې څرمن

**مېښه** :- (مې + خ / ش) (اس ، مو ،ج ـــ ښې) مشـهور کـورنے پيـو والاځناور . ګاومېش . (هند ـــ مَجْ) .

**مېښې** :- (مې + ښې) د "مېښه" ، جمع ده .

**ـــ ته بين غږول** :- مجازاً : نا اهـل تـه خپـل قابليت څرګندول . دداسې کس په مخکښې تقرير وغېره کول چې هغه پرې نۀ پوهېږي . يا ئې پرې اثر نۀ کېږي . سنډا ته بين وهل .

**ميل** :- (مې + ل) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د اوږد والي د کچ يو لويه اندازه چې د ۱۷۶۰ ګزونو هومره وي . يا د اتو فرلانګونو هومره وي او په هر فرلانګ کښې ۲۲۰ ګزه وي . هغه کاڼے چې د سړک په غاړه د يو يو ميل په فاصله لګولے شوي وي .

**ميل** :- (مې +ل) (اس ، مذ) د باز يا د شاهين په مرغۍ ورغوټه کېدنه ، خو مرغۍ نۀ نيول او په بره الوتل . (ف : ستونه) .

**ميل** :- (مې + ل) (صف ، مذ) ډک ، ډک په ډک ، تر جيو / ژيو پورې ډک .

**ميل** :- (مې +ل) (ف ،اس ،مذ) د رانجو د اچه ولو سلائي ، سلائې .

**مېل** :- (مې + ل) (انګ ، مذ) ډاک ، چيټې ، پارسلونه وغېره . ريـل ګاډے ، چې ډاک وړي .

**مېل** :- (مې + ل) (ف ، اس ، مذ) يو طرف ته کږېدنه ، رغبت ، خواهش ، مېلان ، مائله کېدنه .

**ـــ کول ، څۀ ته** :- خواهش لرل ، زړۀ غوښتل ، مېلان لرل ، مائله کېدل .

**ـــ کېدل** :- رغبت کېدل ،خواهش کېدل ،زړۀ کېدل ، مېلان کېدل .

**مېل** :- (مې +ل) تابع مهمل دے ، نورو الفاظو سره راځي . لکه ېېل مېل .

**ـــ خاطر** :- (ـــ ل) خا + ط + ر) (ف ، تر ،اس ،مذ) د زړۀ خـواهش ، د زړۀ غوښتنه ، د زړۀ مېلان .

**ـــ بهېدل** :- ډک بهېدل ، تر جيو / ژيو پورې ډک بهېدل . لکه : والـه مېـل بهېږي

**ـــ ورېدل / ودرېدل** :- پـه سر باندې ودرېدل .

**ـــ کول** :- ډکول ، پُر کول .

**ـــ کېدل** :- ډکېدل ، پُر کېدل .

**مـيلاد** :- (مـي + لا + د) (ع ،اس ،مـذ ، ج ـــ ونـه) پېداوښت ، پېداکېدنـه ، تولد ، د حضور پاک صلي الله عليه وسلم د پېداوښت د ورځې دستوره . د پېداوښت وخت . د عيسىٰ عليه السلام د پېداوښت وخت .

**بعد ال ـــ** :- (ب + ع + د + ل ـــ) .

**بعد از ـــ** :- (ب + ع + د + ا + ز ـــ) (ع تر ،اس ،ظر) د ميعـاد نـه ورسـتو ، د حضرت عيسىٰ عليـه السـلام د پېداوښت نـه د وروستو زمـانې تـاريخ يـا کال وغېره . (دا عموماً "ع" ، يا "م" ، سره څرګندولے شي . لکه ۱۹۸۷ء (عيسوي) ۱۹۸۷م (ميلادي) .

**ـــ النبي** :- (ـــ د + ن + ن + بي) (ع تر ،اس ، مذ) د حضور پـاک صـلي الله عليه وسلم پېداوښت . ددغې ورځې دستوره . عموماً ورته عيد ميلاد النبي وائي .

**مجلس ـــ** :- (م + ج + ل + س ـــ) (عـف ، تـر ، اس ، مـذ) د حضـور پـاک صلي الله عليه وسلم د پېداوښت د ورځې د دستورې مجلس يا ټولنه .

**قبل ال ـــ** :- (ق + ب + لَ + ل ـــ) .

**قبل از ـــ** :- (ق + ب + ل + ا + ز ـــ) (ع تر ،اس ،ظر) د مـيلاد نـه اول ، د حضرت عيسىٰ عليه السلام د پېداوښت نه پخوانۍ تقويم يا تاريخ وغېره . (عموماً ق . م ليکلے شي) لکه : سکندر يوناني په ۳۲۳ق م کښې مړ شوے وۀ .

**ميلادي** :- (مي + لا + دي) (عف تر ، صف) ميلاد سره تعلق لرونکے ، ميلادتـه منسـوب . د بعـدالميلاد د زمانې سن يـا تـاريخ . (د "م" ، پـه لنډ حروف څرګندولے شي) .

**ميلان** :- (مي + لا + ن) (ف ،اس ، مذ) يو طرف تـه کږېدنـه ، توجـه ، التفـات ، رغبت ، خواهش .

**ـــ لرونکے** :- (ـــ ل + رو + ن + کے) (فپ تر ،اس ، فا ، مذ ، ج ـــ کي) خواهش لرونکے ، رغبت لرونکے ،راغبه ،مائله .

**ـــ لرل** :- مېل لرل ،خواهش لرل ، رغبت لرل ،مائله کېدل .

**ميلانه** :- (مي + لا + نَ) (فپ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ نې) د ميـل پـه لحـاظ سره مزدوري يا معاوضه .

**ـــ کول** :- يو ځائے کول ، سره جختـول ، سره ګـډول ، ګډ وډ کول ،هم رائې کول ، هم خيـال کـول . لکـه : هغـه ئې ځان سره مـلاؤ کـړے دے . پـه رنګ وغېره په مقابله کښې کښېښنودل ، په مقابله کښې کښېښنودل .

**ميلاؤ** :- (مي + لا + ؤ) (هـ ، اس ،صف) مـلاؤ ، يوځـائے شـوے ، سره جخت ، سره جنګېدلے . په اتفاق ، سره همرائے .

**ـــ شـوے** :- (ـــ ش + و + ے) (ه ، پ تـر ، اس ، مـف ، ج ـــ ي) يـو ځـائے شوے ، سره جخت شوے . ملاقي شوي ، ملاقات شوے . په لاس راغلے . موندلے شوے . هم خياله شوے ، هم رائے شوے .

**ميلاويـدل** :- (مـي + لا + وي + د + ل) (مـص) يوځـائے کېـدل ، سـره جختېدل . ملاقات کېدل . په لاس راتلل ، حاصلېدل . رائې يوه کول ، هم خيالـه کېـدل . يـو شـان ثابتېـدل ، يـو شـانوالے لـرل . لکـه : دا تصويرونه سره ملاوېږي . جوړېدل ، موزنيت لرل . لکه : دې قميص سره دا لوپټه ملاوېږي . موندلے کېدل .

**ميلاوېدونکے** :- (مي + لا + وې + دو + ن + کے) (هـ پ تر ،اس ،فا ،مذ ،ج ـــ کي) يو ځائے

کېدونکے ، سره جختېدونکے ، سره ګډېدونکے ۔ملاقي کېدونکے ۔هم خياله کېدونکے ، هم رائې کېدونکے ۔موندلے کېدونکے ۔ يوشان والے لرونکے ۔ لکه : دا رنګ هغې رنګ سره ملاوېږي۔ لاس ته راتلونکے ، حاصلېدونکے۔

**مېلک** :- (مې + ل + ک )(اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) يو قسم قيمتي ټوکر ، چې په کښې به د زرينو تارونو کار شوے وو ۔د زربفت په شان يوه کپړه۔

**مېلل** :- (مې + ل + ل )(مص ) کډه اړول ، (مصدر غېر مستعمل دے ۔ځينې فعلونه ئې په استعمال کښې راځي لکه ) هلته مېله ، هغه کډه واړوه ۔ ( خج په ,,مې،، باندې دے )۔

**مېلمانهٔ** :- (مې +ل +ما+ ن )(اس،مذ،ج ) د ,, مېلمه ،، جمع ده۔

**مېلماني** :- (مې + ل+ ما + ني )(اس،مع ) د ونيچيو ځانګه ده ۔ سپين ترين دي۔

**مېلمستيا** :- (مې+ل+م +س+ ت +يا )(پ تر ،اس ،مو ،ج ــ ګانې ) دعوت ، ډوډۍ ، ضيافت۔

**دغرمې ـــ** :- (د + غ + ر + مې ـــ )(پ تر ،اس، مو ،ج ــ ګانې ) د غرمې د ډوډۍ دعوت۔ د لنچ دعوت۔

**رسمي ـــ** :- (ر + س + مي ـــ )(فپ ، تر، اس،مو ) هغه دعوت کوم چې د حکومت د طرفه سرکاري طور سره شوے وي۔

**ـــ خوړل** :- د دعوت ډوډۍ خوړل۔

**ـــ ورکول** :- دعوت ورکول ، ډوډۍ کول۔

**د ـــ کالي** :- (د ـــ کا + لي )۔

**د ـــ جامې** :- (د ـــ جا + مې )(پ تر ،اس ، ج ) هغه خاص قسم کالي يعني جامې چې کومې په لويو رسمي مېلمستياګانو کښې اغوستې شي۔

**دچايو ـــ** :- (د +چا + يو ـــ )(پ تر ،اس، مو ، ج ـــ ګانې ) هغه دعوت چې په کښې چائے ورکولے شي۔ټي پارټي۔

**دشپې ـــ** :- (د + ش + پې ـــ )(پ تر ،اس ، مو ،ج ـــ ګانې ) د شپې دډوډۍ دعوت ، ډنر۔

**مېلمستځے** :- (مې+ل + م+ س + ت +(د) ځے )(پ تر ، اس،ظر،مذ ، ج ــ ځي) د مېلمنو کوټه يا ځاے ۔د مېلمستيا کولو ځاے ، مېلمستون۔

**مېلمستون** :- (مې + ل+ م + س+ تو+ن )(پ تر ،اس ،ظر ،ج ــ ونه )د مېلمنو ځاے، مهمان خانه۔

**مېلمنه** :- (مې +ل + م+ن )(اس ، مو ، ج ـــ نې ) د ,, مېلمه ،، تانيث دے۔

**مېلو** :- (مې + لو )(اس، مذ ، ج ـــ ګان ) مشهور ځنګلي ځناور ، ببر ، هږ ، خرس، مجازاً ـ غټ سړے ، غټ او بې ډوله سړے ۔مجازاً : احمق،کم عقل۔

**سپين ـــ** :- (س + پي + ن ـــ )(پ تر ،اس،مذ ،ج ـــ ګان ) د سپين رنګ مېلو چې عموماً په قطب شمالي کښې په واؤرينه سيمه کښې موندے شي۔

**تور ـــ** :- (تو + ر ـــ )(پ تر ،اس،مذ ،ج ــ ګان ) د تور رنګ مېلو۔

**مېلوګاني** :- (مې + لو + ګا+ني )(پ تر ،اس،مو ـــ ج ) د ,, مېلوګان ،، تانيث دے۔

**مېلوډي** :- (م / مې + لو + ډي )(انګ ،اس ، مو ) خوږه نغمه ، سرنا که غاړه ۔ اهنګ ، ترنم۔

**مېلوه** :- (مې + ل + وَ )(اس،مو ) انګور ، کور۔

**مېله** :- (مې + لَ )( ه ،اس، مو ، ج ـــ لې ) په کوم خاص موقع د ښار کلي د خلقو د ښار کلي نه باهر د خوشحالۍ اجتماع چې په کښې د خوراک وغېره د خيزونو دوکانونه او د قسم قسم لوبو او د زانګلو سامان وي ۔ د خلقو جمع ، هجوم ، ګڼه ګونه۔

**ـــ ټبله** :- په مېله کښې ډېره ګڼه ګونه وي ځکه په کښې اکثره ديکې خوړے شي ۔د ګډ وډ ي ځاے ۔ په مېله کښې هر قسم ښځۀ او بد ځيزونه خرڅولے ( ټبله کولے ) شي ۔ځکه د ښځۀ او سوچ د فکر نه ځوک کار نۀ اخلي۔

**ـــ ټبله ,,بودل** ،، :- ګڼه ګونه بېره باره ,,بودل ،، د ګڼې ګونې په وجه ديکې خوړل او ورکول۔مجازاً : بدنظمي بودل۔

**ـــ لګېدل** :- په خاص خاص موقعو د خلقو د کلي نه باهر وتل او خوشحالۍ کول ۔چې په کښې د خوراک او تفريح قسم قسم سامان وي ۔ عموماً د زيارتونو خوا کښې لګولے شي۔مجازاً د خلقو راجمع کېدل۔د تماشبينو اجتماع جوړېدل۔

**د ښځو ـــ** :- (د + ځ/ش + (د) زو ـــ )(پ تر ، اس،مو ، ج ــ لې ) هغه مېله چې خاص د زنانهٔ د پاره مخصوص وي۔د وړو هلکانو نه علاوه لوئې سړي ورله نشي ورتلے۔

**ـــ کول** :- د مېلې سبل له تلل۔

**مېله** :- (مې + ل )(اس ،مو ، ج ـــ لې ) کور ، مېنه ، د استوګنې ځاے ، د عارضي ايساريدلو ځاے ، پړاؤ۔

**د پلار ـــ ټينګه ول** :- د پلار کور ټينګه ول ، د پلار صحيح جانشين جوړېدل۔

**ميله** :-(مي + ل ) د ,, ميل ،، بدل شکل دے ۔ عموماً د عدد رسمونو سره راځي۔ لکه : سل ميله لار۔

**ميلي** :- (مي + لي )(صف ) ميل سره تړلے ، ميل ته منسوب ۔ لکه : د ښار په لس ميلئ کښې۔

**مېلې** :- (مې + لې )(اس ،مو ، ج ) د ,,مېله ،، جمع ده ۔

**ميلے** :- (مي + لے )(صف ،مذ ، ج ـــ لي ) هغه سړے چې ډېر زر په قهرېږي قهرندوکے ، مغلوب الغضب۔

**ميلئ** :- (مي + ل + ئ )(صف،مو ) د ,,ميلے ،، تانيث دے۔

**ميلي ګرام** :- (مي + لي + ګ + را + م )(انګ ،اس،مذ ،ج ــ ونه ) د يو ډېر سپک شان وزن نوم دے۔

**مين** :- (م + ي + ن ) (اس، مذ ، ج ــ ان ) عاشق ،معشوق ، شېدا ،محبوب۔

**ـــ کول** :- عاشق کول ، مفتون کول ، شېدا کول۔

**مينا** :-(مي + نا )( ف ، اس، مو ، ج ـــ ګانې ) شيشه ، رنګينه شيشه ، د شرابو صراحي ، د شرابو د شيشې لوے لوښے (د شرابو بوتل )۔

**مينا** :-(مي + نا )(اس ،مذ ) د نيله رنګ کاڼے ، لاجورد ۔

**ـــ بازار** :- (ـــ با + زا + ر )(ف تر، اس، مذ ، ج ــ ونه ) هغه بازار چې پخوا به د بادشاه د سبل د پاره جوړولے شۀ او رنګ رنګ ځيزونه به په کښې کښېښودے شول ، هغه بازار چې د زنانهٔ د پاره لګولے شي او هم زنانه په کښې هر قسم ځيزونه او دستکارۍ وغېره خرڅوي۔

**مينار** :- (مي + نا+ ر )(ع،اس،مذ ،ج ــ ونه ) مناره ، منار ۔

**مينائي** :- (مي+ نا + ئي )(صف ) هغه ځيز چې د ميناکار پرې شوے وي۔ مرصع ،نيله رنګ ، لاجوردي رنګ۔

**مئين** :- (م +ئي +ن ) د ,, مهين ،، بدل شکل دے ۔

**مينت** :- (مي + ن + ت )(اس،مذ ،ج ــ ونه ) منت،عاجزۍ سره خواست،زاري ۔ (دمنت بدل شکل دے )(پ ق ) زورنه ،سرزنش۔

**مينتابهٔ** :- (م+ ئ+ ن + تا + ب ) د ,, مينتوب ،، بدل شکل دے۔ همدغه معنٰى لري۔

**مينتوب** :- (م+ ئ +ن+ تو+ ب )(پ تر ،اس،مذ ،ج ـــ ونه ) مينه کونه ، مينه ، عاشقي ، زړۀ بېلنه۔

**د ـــ وادهٔ** :- (د ـــ وا + د )(پ تر ، اس ، مذ ) هغه وادهٔ چې د وادهٔ نه اګاهو د هلک او جينۍ په خپله کښې مينه پاتې شوې وي۔

**مينجوټ** :- (مي + ن+ جو + ټ )(اس ، مذ ) چار زانو کښېناستنه ۔ په داسې انداز ناسته چې پښې ماتې کړي او د يوې بلې د لاندې کړي۔

**ـــ وهل** :- د مینجوټ په انداز کښېناستل. په داسې طریقه کښېناستل چې پښې د مخالف زنګون د لاندې راشي.

**مینجور** :- (مي + ن + جو + ر)(وــ منجاور).

**مېنځ** :- (م + ي + ن+ (د) ز)(اس ظر) میان، وسط، د دواړو طرفونو نه په برابره فیصله، منځ (بازاري) د ښځو پټ اندام (په کنځلو کښې استعمالېږي).

**د ـــ حال** :- (دـــ حا + ل)(پ تر، اس، مذ) اصل حال، حقیقت.

**په ـــ کښې کاڼي ټکه ول** :- د بل په کار کښې دخل ورکول. د بل په معامله کښې ګوتې وهل.

**ـــ ګوره** :- (ـــ ګو + ر)(پ تر، اس، ج ـــ ري) مېنځ نے، درمیانه ،وسطي.

**مېنځ توب** :- (مي + ن + (د) ز+ تو + ب)(پ تر، اس، مذ) د وینځې کار، کنیز والے، وینځه کېدنه.

**مېنځ وئي** :- (م +ئ + ن (د) ز + و + ئ) د ,, منځوے ،، تانیث دے.

**مېنځړکه** :- (مي+ن+ (د) ز + ړ + ک)(پ تر، اس، مو، ج ـــ کې) مېنځ ه، وینځه، کنیز

**مېنځ ګړتوب** :- (م + ي + ن + (د) ز + ګ+ ړ + تو + ب)(پ تر، اس، مذ) دریم ګړتوب، ثالثي، بې پرې فیصله کونه، منصفي.

**مېنځ ګړے** :- (م + ي + ن + (د) ز + ګ + ړے)(پ تر، اس، مذ، ج ـــ ړي) دریم ګړے، په مېنځ کښې راتلونکے ثالث، بې پرې فیصله کوونکے، میانجي.

**مینځل** :- (مي+ ن (د) ز+ل)(مص) وینځل، په اوبو سره صفا کول.

**مخ لاس ـــ** :- (م + خ + لا+ س ـــ) مخ او لاسونه وینځل، مخ او لاسونه په اوبو سره صفا کول.

**مینځلو** :- (مي +ن + (د) ز + لو) د مینځل بدل شکل دے. چې د مغبره ؤ تورو سره راځي.

**دجامود ـــ مشین** :- (د+ جا+مو، د ـــ م+ شي + ن)(پ تر، اس، مذ، ج ـــ ونه) هغه مشین چې جامې اوبهٔ او د وینځلو پوډر په کښې واچولے شي نو د بجلۍ په زور ئې صفا کړي.

**مینځلے** :- (مي+ن+ز+لے) وینځلے شوے، په اوبو صفا کړے شوے.

**ـــ سترګې** :- (پ تر، اس، مو، ج) وینځلې شوې سترګې، مجازاً: بې شرمه او بې لحاظه سترګې یا سړے.

**مېنځومان** :- (م+ن+ (د+ زو + ما + ن) مېنځنے، د مېنځ، په مېنځ مېنځ کښې. درمیان، د وسطي درجې، وسطي حالت.

**په ـــ کښې** :- (پ ـــ کې) په مېنځ کښې، درمیانه. په اثنا کښې، په دوران کښې.

**ـــ کورنی** :- (ـــ کو + ر + ن + ي)(پ تر، اس، مو) د درمیاني درجې کورنۍ.

**مېنځکې** :- (م+ ي+ن+(د) ز + کې)(پ تر، اس، ظر) په درمیان کښې، په وسط کښې، دوران کښې، اوان کښې.

**پـه دې ـــ** :- (پ+ دې ـــ)(پ تر، اس، ظر) په دې دوران کښې، په دې دوران کښې، ددغې وخت په دوران کښې.

**مېنځه** :- (م +ي +ن + (د) ز)(اس، مو) د ,, مېنځ ،، تانیث دے.

**ـــ ګوته** :- (ـــ ګ/ ګو + ت)(پ تر، اس، مو، ج ـــ تې) د مسواکې یا د شهادت د ګوتې په خوا کښې ګوته، چې د ټولو ګوتو نه اوږده وي.

**مېنځه** :- (مي + ن +(د) ز)(اس، مو، ج ـــ ځې) وینځه، کنیز.

**مېنځئ** :- (م + ي + ن + (د) ز + ن+ ئ) د ,, مېنځنے ،، تانیث دے.

**مېنځنے** :- (م + ي + ن + (د) ز + نے)(پ تر، اس، ظر) درمیانه، وسطي، منځنے.

**مېنځي** :- (مي + ن + (د) زي)(فعل) د ,, منځیل) مصدر نه/ څخه د حال فعل (د واحد او جمع صیغه) نورې صیغې په دې ډول دي. مېنځے مېنځي، مینځیم او مېنځو.

**مېنځیانې** :- (مي + ن + (د) ز + یا + نې)(اس، مو، ج) د ,, مېنځه ،، بله جمع ده. مېنځے.

**مېند** :- (مي + ن +د)(اس، مذ) موند، موندنه، یافت.

**مېندک** :- (مي + ن + د + ک)(اس، مذ، ج ـــ ونه) د تریاکو چیلم، د جنډو د څښکلو چیلم. د مدکو چیلم.

**مېندکے** :-(مي+ن + د+کے)(اس، مذ، ج ـــ کي) تریاک څښکونکے، مدکي، جنډوباز.

**مېندل** :-(مي + ن +د+ ل)(مص) موندل، ورک شوے څیز وغېره په لاس راتلل، کوم څیز بې طمعې پروت لیدل او اخېستل. حاصلېدل، لاس ته راتلل.

**ـــ کېدل** :- موندلے کېدل، لاس ته راتلل، ورک څیز، یا بې طمعې کوم څیز لاس ته راتلل. مینده کېدل.

**شکست ـــ** :- (ش + ک + س + ت ـــ) ماتې کول، مېدان بېلل، په مقابله کښې پاتې راتلل.

**برے ـــ** :- (ب + رے ـــ) فتح موندل، کټور کېدل، بریالے کېدل.

**مېندنه** :- (مي + ن + د +ن)(حمص) موندنه، ورک شوے څیز لاس ته راتلنه، بې طمعې څیز لاس ته راتلنه، حصلېدنه، حاصلېدنه.

**مېندو** :- (مي+ ن + دو) د ,, میندي ،، بدل شکل دے. د مغبره ؤ تورو سره راځي.

**مېنده** :- (مي +ن +د)(اس، مذ، ج ـــ ان) هغه ځناور چې خصي شوے وي.

**ـــ پل** :- (ـــ پ + ل)(پ، تر، اس، مذ) هغه ګړ چې خصي شوے نهٔ وي.

**ـــ کېدل** :- موندلے کېدل، بیاموندلے کېدل، پېدا کېدل.

**مېندهٔ** :-(مي + ن + د)(وـــ میندنه).

**مېندي** :-(مې +ن + دي)(اُر، اس، مو) نکریزې، نکریځې، نرکیځې.

**څلور میندي** :- مجازاً: خلور عناصر اور، اوبهٔ، خاورې او هوا.

**مېندے** :- (مې +ن+دے)(میندي)(اس، مو، ج) د ,, مور ،، جمع ده.

**مېنډ** :- (مې + ن + ډ)(اس، مذ، ج ـــ ونه) د اوبنې ځل چې د وښو نه جوړ شوے وي.

**مېنډر** :- (مې + ن + ډ + ر)(اس، مذ، ج ـــ ان) د کلي وغېره مشر. (اصلاً د انګرېزي ,, مېن اف اړډر ،، وران کړے شکل دے).

**مینه** :-(مې +ن)(اس، مذ، ج ـــ نې) کور مکان، خانه، داوسېدلو ځاے.

**مینه** :- (مي + نَ)(اس، مو، ج ـــ نې) محبت، عشق.

**ـــ تورېدل** :- مینه نهٔ پاتې کېدل، مینه نورېدل.

**ـــ ودانول / سازول** :- کور جوړول، کور ابادول.

**په ـــ غزنه لرل** :- په کور کښې غزونه هم نهٔ لرل چې د سورې لاندې ئې کښېني. مجازاً: هیڅ کور، جائیداد وغېره نهٔ لرل، ډېر زیات خوار او غریب ,,بودل،،.

**مینه** :-(مي + ن)(اس، جم) مویز، کشمکش.

**مئینه** :-(م + ائ +نَ).

**مېینه** :- (م + یي + ن)(صف) هغه فصل چې د عام وخت نه وړومبے راځي. (د پسینه په مقابل کښې) وړاندې پخېدونکے (فصل مېوه وغېره).

**مېینه** :- (م + یي + ن)(وـــ مهینه).

**مینېدل** :- (م + ئ + نې + د + ل)(مص) عاشق کېدل، شېدا کېدل، مئین کېدل، چا سره مینه په زړهٔ کښې پېدا کېدل.

**مئېدل**:- (م + ئې + د+ل)(مص) ښکاره کېدل،په نظر راتلل ، ليدلے کېدل.

**مينو** :- (مي+ نو)(ف،اس) جنت ، بهشت ، اسمان ، هغه شيشه چې په کالو کښې لګولے شي.

**مينو** :-(مي + نو)(انګ ، اس،مذ)(هوټل) هغه کاغذ يا کارډ چې په کښې په هوټل کښې د پخېدونکي څيزونو فهرست وي.

**مېنوش** :- (مې + نو + ش)(ف تر،اس ، صف ، مذ ، ج ـ ان) شراب څښکونکے ، شرابخور ، شرابي.

**ميو** :- (م + يو) د ,,مے ،، بدل شکل دے چې د مغيرهٔ تورو سره راځي . لکه :د ميو جام.

**ميو** :- (م +يو/ يو)(اس ، صوت) د پيشو اواز ، مياؤں.

**ميور** :- (م+ يو + ر)(ه ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د هندي د ,,مور ،، بدل شکل دے.طاؤس ، مشهور ښکلے ګډېدونکے مارغهٔ.

**ميوره**:- (م+يو+ ر)(اس،مو، ج ــ رې) د ,, ميور ،، تانيث دے.

**ميوزک** :- (م+ يو + ز + ک)(انګ ، اس ، مذ) موسيقي ، موزيک ، د ساز يا د ګڼو سازونو غږونه.

**ميوزيم**:- (م + يو +زي + ي +م)(انګ ،اس ،مذ ، ج ـــ ونه) عجائب خانه ، عجائب ګهر.

**ميوند** :- (مې +و+ ن +د)(اس ، مع) په افغانستان کښې د يو ځاے نوم دےچېرته چې د پښتنو او د پيرنګيانو ترمېنځه سخت خونړے جنګ شوے وۀ.

که په ميوند کښې شهيد نه شوې
خدائيګو لاليه بې ننګۍ له دې ساتينه (ټپه)

**ميونسپل** :- (م+ يو+ نې + س + پ + ل)(انګ،صف) د ښارسره تعلق لرونکے ،د ښار د حکومت.

**مېوه** :- (مې + وه)(اس، مو ،ج ـــ وې / جات) په ونه کښې پېداکېدونکے د خوراک څيز ، ثمر، فروټ.(اُر ــ پهل) متيائي ، خواږهٔ.نتيجه ، د کار ( ښهٔ يا بده) نتيجه.

د صبر مېوه خوږه وي.(متل)

**ـــ دار** :-(ـــ دا+ر)(ف پ ، تر، صف،مذ ،مو ــ ه)مېوه لرونکے ، مېوه ورکونکے، ثمرداره.

**مېير** :- (مې + يَ+ ر)(انګ،اس ، مذ، ج ــ ان) د ښار د ټولو نه لوے مشر.د بلدئې رئيس ، د ښار رئيس.

**ميه** :- (م + يَ)(اس،مو، ج ـــ يې) د ګډو (بزو) رمه.

**مئے** :- (م+ئے).

**مئ** :- (م+ ئ)(اس ، جم) غله،د ماش دال.

**مے** :- (مے)(ف،اس، جم) شراب ، باده، خمر.

**ـــ پرست** :- (ـــ پ+ ر = س + ت)(ف تر، صف،مذ ، ج ـــ ه) د شرابو عبادت کوونکے ، مجازاً : سخت شرابي ، شرابخور.

**ـــ پرستي**:- (ـــ پ+ر +س+تي)(ف تر، اس، مو)د ميو يعني د شرابو عبادت کونه . مجازاً : ډېر زيات شراب څښکنه . شخت شرابي توب ، شرابخوري.

**ـــ آشام**:- (ـــ آ+شا +م).

**ـــ خور** :- (ـــ خو + ر).

**ـــ نوش** :- (ـــ نو + ش).

**ـــ کش** :- (ـــ ک + ش).

**ـــ ګسار** :- (ـــ ګُ+ سا + ر)(ف، تر،صف ، مذ ، مو ـــ ه) شراب څښکونکے ، شراب خور ، شرابي.

**ـــ فروش** :- (ـــ ف+ رو+ ش)(ف تر،اس، مذ، ج ـــ ان) شراب خرڅوونکے.

**ـــ فروشه**:- (ـــ ف + رو+ شَ)(ف تر،اس،مو، ج ـــ شې / انې) د ,,مے فروش ،، تانيث دے.

**ـــ کده** :- (ـــ ک + د).

**ـــ خانه**:- (ـــ خا + ن)(ف، تر،اس، مو، ج ـــ ې) شراب خانه، هغه ځائېچېرته چې شرابيان جمع کېږي او شراب څښکي.

**مے** :- (مَے)(اس جم) ميں مشهوره غله ، ماش ، ددال په طور پخولے شي.

**مے** :- (ضمير) متکلم لنډ ضمير دے .د ,,ما ،، او,,زما ،، معنې ورکوي . ځينو خلقو زېرسره ,,م ،، هم ليکلے دے.

**د ـــ تور او سپين** :- مجازاً : ډېر لږ مقدار . لکه :د هغه په دې کښې د سره ګناه هم نشته. لکه د مے تور او سپين.

**مے مے** :- (مے +مے)(اس ، مذ)(دماشومانو په ژبه / جبه) د مور تې.د مور پېئ. (خځ په دويم ,,مے ،، باندې دے).

# ن

**ن** :- (نون) حرف د پښتو د الف با شپږ دېرشم ، د عربي پينځهٔ ويشتم د فارسي نهٔ ويشتم او د اردو دوه دېرشم حرف دے ۔ د ابجد له حسابه ئې ''۵۰'' عدد فرض کړے شوے دے۔

**ــــ ن** :- (ـــــ ن) (لاحقه) د صفت جوړولو د پاره پکارولے شي ۔لکه چينجے ، چينجن

**نا** :- (نا) سابق ـد نفي علامه لکه ناجوړ ، ناروغ ، نا امېد ، نابلد وغېره

**ــــ نا** :- (ـــ نا) (لاحقه) د ,, ترنم ،، د پاره ځنو شعرون خصوصاً په مصرعو کښې (ټپو) کښې په سُر کښې د وئيلو په وخت استعمالېږي. لکه : راشه زما د ياري و اوړه ما د ناز په خندا ډېر وژلي دينه (په دې نه يا نا فالتو دے)

**نا** :- (ن +ا) (مو) مزه، ذره،سليقه،ذوق،کميا ،ادب،نزاکت

**ناآباد** :- (ن +ا +ا +ب +ا +د)(صف ، مذ ، مفرد ، مو ـــ ه) هغه ځاے چې ابادي په کښې نهٔ وي ، شاړه ، بنجر

**ناآتر** :- (ن +ا+ ت + ر) (صف ، مذ ، مفرد) بې خبر ، ناخبر ، مؤنث : بې خبره ، ناخبره ، ناآتره

**ــــ اتفاقه** :- (ـــ ا + ت + ت + فا + قَ) (عف ، تر ، صف ، مذ ، مو) هغه چې اتفاق نهٔ لري ، بې اتفاقه

**ــــ اتفاقي** :- (ـــ ا + ت + ت + فا+قي) (عف تر ، اس ، مو) اتفاق نهٔ لرنه ، نفاق ، يوه رائې نهٔ لرنه۔

**ــــ اټاله** :- (ـــ ا + ټا + ل) (پ تر ، صف) بې قراره ، ناقلاره
لکه :- **هغه ټوله شپه نااټاله وو**

**ــــ اجره** :- (ــــ ا + ج + ر + ا) (صف ، مو) هغه کار چې لاسرته نهٔ وي رسېدلے

**ــــ ارامي** :- (ـــ ا + ر + ا + م + ي) (ف تر ، اس ، مو ، مفرد) ناقراري ، بدامني ، ګډوډي

**دزړهٔ ــــ ارامي** :- (د +ز+ ړ ـــ) (ف پ تر ، اس ، مو) د زړهٔ ناقلاري ، قلبي ناقلارے

**قلبي ــــ ارامي** :- (ق + ل + بي ـــ) (۱) د زړهٔ ناقلارے
(۲) د زړهٔ بې قراري

**ــــ ازموده** :- (ـــ ا + ز + مو + د)(ف تر ، صف) هغه چې ازمائش ئې نهٔ وي شوے۔بې ازمېښته

**ــــ ازموده کار** :- (ـــ ا + ز + مو + د +کا +ر) (ف تر ، صف ، مذ ، ج ـــ ان) هغه چې د کار تجربه ئې نهٔ وي۔ بې تجربې ، په کار ناپوهه

**ــــ استوار** :- (ـــ ا + س + ت + وا +ر) (ف تر، صف،مذ ، مو ـــ ه) هغه چې پائدار نهٔ وي ،غېر مضبوطه

**ــــ اړه** :- (ـــ ا + ړ) (ف تر ، صف ، مذ ، مفرد) هغه څوک چې چا ته محتاج نهٔ وي۔

**ــــ اړتيا** :- (ـــ ا + ړ+ت+ي+ا) (مو ، مفرد) بې نيازي ، چا ته څهٔ حاجت نهٔ لرنه۔

**ــــ ازمائيلے** :- (ـــ ا + ز + م +ا+ ي+ل +ے) (ف تر ، صف ، مذ ، مفرد) هغه چې ازمېښت پرې نهٔ وي شوے۔

**ــــ اشناتوب** :- (ـــ ا + ش + ن + ا + ت+ و+ب) (اسم ، مفرد ، مذ) نابلدتيا ، نابلدتوب ، ناواقفيت

**ــــ اشنائي** :- (ـــ ا + ش + نا + ئي) (ف تر ، اس ، مو) اشنائي نهٔ لرنه ، ناواقفيت ، نابلدتيا اُوپېره والے ، ناپېژندګلوي ، ناپېچند ګلوي ، ناپېژندګلي

**ــــ امني** :- (ـــ ا + م + ني) (ف تر ، اس ، مو) بدامني ، امن نه ,, بودنه ،، د امن نيشتيا

**ــــ امنے** :- (ـــ ا + م + ن + ے) (صف ، مفرد ، ج ، ني) هغه چې په امن کښې نهٔ وي۔بې امنه غېر محفوظ

**ــــ امېد** :- (ـــ ا + م + ي + د) (صف + مذ + مفرد) مايوس ، ناامېده،هغه چې څهٔ امېد ئې نهٔ وي۔ نامېند ، نامېنده

**ــــ امېده** :- (ـــ ا + م + ي + د + ه) (صف ، مذ / مو) (۱) وګورئ ناامېد (۲) زنانه چې ګېډه ئې نهٔ وي۔حامله نهٔ وي۔

**ــــ امېده کول** :- بې طمعې کول ، مايوسه کول ، طمع غوځول

**ــــ امېده کېدل** :- امېد نه پاتې کېدل ، مايوسه کېدل بې طمعې کېدل۔

**ــــ امېدي** :- (ـــ ا + م + ي + د + ي) (اسم ، مفرد ، مو) امېد نهٔ لرنه ، نامېندي

**ــــ اندېش** :- (ـــ ا + ن + دې + ش) (ف تر ،صف،مذ،مو ـــ ه)(۱) هغه چې فکر نهٔ کوي ۔فکر نهٔ کوونکے ، لکه : عاقبت نااندېش (۲) هغه کار يا خبره چې په کښې د فکر ضرورت نهٔ وي۔ښکاره ، بديهي۔

**ــــ انسان** :- (ـــ ا + ن + س + ا + ن)(صف ،مو) ناترس ، سنګدل ، سخت زړے ، ظالم ، جابر ، بې رحمه ، وحشي۔

**ــــ انصاف** :- (ـــ ا + ن + ص + ا + ف)(صف ، مذ) انصاف نهٔ کوونکے ، بې انصاف ، بې انصافه ، ناانصافه۔

**ــــ انصافي** :- (ـــ ا + ن + ص + ا + ف + ي)(اسم ،مفرد ،مو) د ناانصاف کېدو حالت ، انصاف نهٔ کونه۔

**ــــ انصافي کول** :- انصاف نهٔ کول ، ظلم کول ، زياتے کول۔

**ــــ اوډلے** :- (ـــ و + ډ + ل + ے)(صف ، مذ) غېرمرتب ، نامنظم ، ګډ وډ ، بې ترتيبه۔

**ــــ اوزګار** :- (ـــ او + ز +ګا + ر / رَ)(پ تر ، صف) **هغه چې اوزګار نهٔ وي** ۔ په کار کښې مصروف ، چې فرصت نهٔ لري ۔ لکه : **ماشومان اوزګار هم نهٔ وي نااوزګار هم نهٔ وي**۔

**ــــ اهل** :- (ـــ ا + هـ + ل)(عف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې اهل نهٔ وي۔نالايق ۔**هغه چې د کوم کار اهليت يا قابليت نهٔ لري**۔

نااهلان بـه کـل لـه اهلو برابر شي
که اصلي زربفت يکسان شي له شړيو (سعيد)

**ــــ اهـل** :- (ـــ ا + ه / هٔ + ل)(عف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) **هغه چې اهليت نهٔ لري ، نالايقه**۔

**ــــ اهلي** :- (ـــ ا + هـ + لي)(عف تر ، مو) **نالايقي ، نالايقت ، ناقابليت**۔

**ــــ ايسيا** :- (ـــ ا + ي + س + ي + ا)(صف ، مذ) بدرنګ ، نازيبا ، بدنما ، بدشکله۔

**ـــــب** :- (ـــ ب) (اسم ، صف ،مذ ) (۱) حاکم ، خلیفه ، امیر ، بادشاه ـ
(۲) ناب (ن + ا + ب ) سوچه ، تنکی ، ژنکی ـ

**ـــــب** :- (ـــ ب) (ف ،صف ، مذ ، مو ـــ ه ) خالص ، سوچه ، بې گډونه ،
لکه : مئې ناب ـ

**ـــــباب** :- ( ـــ ب + ا + ب ) (صف ،مذ) هغه څۀ چې رواج نۀ وي ـ غېر
مروج ـ

**ـــــبات**:- (ـــ ب + ا + ت ) (اسم ،مذ ) خواږۀ ، شېريني ، نبات ، نانبات ـ

**ـــــباتي** :- (ـــ ب + ا + تي ) (پ تر ،صف ) د ناباتو سره تعلق لرونکے ـ خوږو
سره تعلق لرونکے ـ

پـه نـاز مـکېږ ئې نعمتونه گـونـا گـون خوړلو
ناباتي خولې ئې شوې خاکدان دېبلتانۀ نه له تاخته (حافظ)

**ـــــباري**:- (ب + ا + ر + ي ) (صف ) هغه څاروے چې د بار وړولو عادت نۀ
وي ـ

**ـــــباري خر** :- (ـــ با + ر + ي + خ + ر ) (پ تر ،اس ) هغه خر چې لادبار د وړلو
نۀ وي ـ مجازاً وړوکے ، کم عقل سړے ـ

**ـــــبالغ** :- (ـــ ب + ا + ل + غ ) (عف تر ، صف ، مذ ، مفرد ) هغه هلک چې
بلوغ ته نۀ وي رسېدلے ـ ناپوهه ، بې تجربې ـ

**ـــــبالغي** :- (ـــ با + ل + غي ) (ف تر ،اس ، مو ) بلوغت تـه نـۀ رسېدنه ،
ناځواني ، کم عمري ، خوردسالي ، وړوکوالے ـ

**ـــــباوره** :- (ـــ ب + ا + و + ر ) (پ تر ،صف ) هغه چې باور پرې نۀ وي ـ بې
اعتباره ـ

**ـــــبائده** :- (ـــ با + ئې + د ) (ف تر ، صف ) هغه کار چې کول ئې مناسب نۀ
وي ـ نامناسبه ـ

**ـــــبائده کول** :- نامناسبه ، هغه کار چې کول ئې په کار نۀ وي ـ

که له خدایه دې بائده وي
له خـودئ به نابائده کړې (حمید )

**ـــــبرابرے** :- (ـــ ب + را + ب + رے ) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ري ) برابر
نۀ بودنه ، سره سم نۀ بودنه ـ

**ـــــبغه** :- (ـــ ب + غ ) (ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ان / نوابغ ) ختے او مختار
شخصیت ، جینیس ـ

**ـــــبېر** :- (ـــ ب + ب + ر ) (فعل ) ناڅاپه ،سمدستي،ناخبره، نوبېر ـ

**ـــــببر** :- (ـــ ب + ب + ر ) (صف ، مذ ) وحشي ، شاړ شپاړ بنیادم ، بې
تهذیبه ، نابېر ـ

**ـــــبرهو** :- (ـــ ب + ر + ه + و ) ناگهانه ، سمدستي ـ

**ـــــبېر** :- (ـــ ب + ب + ړ ) (صف ) وگورئ نابېر ـ

**ـــــبړ** :- (ـــ ب + ړ ) (صف ،مذ ) (۱) مضبوط ، قوي ـ (۲) نابُېر ، شاړ شپاړ
، بې تهذیبه ـ

**ـــــبکار** :- (ـــ ب + کا + ر ) (ف تر ،صف،اس،مذ ،ج ـــ ان ،مو ـــ ه ) (۱) و ـــ
ناپکار )(۲) شرارتي ، وران کارے (۳) بدذاته ، بد اخلاقه ، بد کرداره ـ

**ـــــبلد** :- (ـــ ب + ل + د ) (صف ، مذ ) نااشنا ، ناواقف ، ناخبره ، بې خبر ،
مؤنث نابلده ـ

**ـــــبلدتوب** :-(ـــ ب+ل+د+ ت +و+ ب ) (اسم ،مفرد ، مذ) وگورئ : نااشناتوب ـ

**ـــــبلدتیا** :- (ـــ ب+ل+د+ت+ي+ ا ) (اسم ،مؤ ،مفرد ) وگورئ : نااشناتوب ـ

**ـــــبوبر** :- (ـــ ب + و + ب + ر ) (صف ) وگورئ: نابېر ـ

**ـــــبوبره** :- (ـــ ب + و + ب + رَ ) وگورئ : نابېره ـ

**ـــــبود** :- (ـــ ب + و + د ) (صف ، مذ ) بې کاره ،بې فائدې ،عبس ،خراب ،
مؤنث نابوده ـ

**ـــــبوده** :- (ـــ بو + دَ ) (ف تر ،صف ،مؤ ،ج ـــ دې ) د " نابود " ، تانیث دے ـ

**ـــــبوده زمکه**:- (ـــ ز + م + کَ ) (پ تر ،اس ،مؤ ،ج ـــ کې ) بېکاره زمکه /
مځکه ـ

**ـــــبود** :- (ـــ بو + د ) نیش ، نیست ، ورک ، محو ـ

هر چې دي بغېر له خدایه
همـه وگـڼه نـابـوده (رحمان بابا )

**ـــــبود** :- (ـــ بو + دُ / دَ ) (ف تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه ) (۱) هغه چې نیش
(نیست ) شي ـ یاوي ، معدوم ـ (۲) مفلس ، پرېشانه ـ

**ـــــبود توب** :- (ـــ ب + و + د+ت + و + ب ) (اسم ،مذ ، مفرد ) بېکار توب ،
بې فائدې توب ، نابودتیا ، نابود والے ، نابودي ـ

**ـــــبودتیا** :- (ـــ ب+ و+د+ ت + ي + ا ) (اسم ،مو ،مفرد ) وگورئ : نابودتوب ـ

**ـــــبودوالے** :- (ـــ ب+ و+د+و+ ا+ل+ ے ) (اسم،مذ ،مفرد ) وگورئ : نابودتوب ـ

**ـــــبودول** :- (ـــ ب + و + د + و + ل ) (مصدر ،مت ) بېکاره کول ، خرابول ،
بربادول ، ضائع کول ـ

**ـــــبودون** :- (ـــ ب + و + د + و + ن ) حاصل مصدر ـ وگورئ : نابودول ـ

**ـــــبودونکے** :- (ـــ ب + و+د +و+ن+ک+ ے ) (اسم فاعل ، مفرد ،مذ ) جمع :
نابودنکي ، مو : نابودنکې وگورئ : نابودول ـ

**ـــــبودونه** :- (ـــ ب + و + د + و + ن ) (حاصل ، مصدر ) وگورئ : نابودول ـ

**ـــــبودي** :- (ـــ ب + و + د + ي ) (اسم ،مفرد ،مذ ) وگورئ : نابودتوب ـ

**ـــــبودېدل** :- (ـــ ب + و+د+ ي + د +ل ) (مصدر ، لازم ) بېکاره کېدل ،
ضائع کېدل ، بربادېدل ـ

**ـــــبودېدن** :- (ـــ ب+ و+د+ ي+د+ ن ) (حاصل مصدر ) وگورئ : نابودېدل ـ

**ـــــبودېدنه** :- (ـــ ب + و+د+ي + د + نَ ) (حاصل مصدر ، مو ) خرابېدنه ،
ورانېدنه ـ

**ـــــبودونکے** :- (ـــ ب+و+د+و+ن+ک+ ے ) (اسم فاعل ،مفرد ،مذ ،ج
نابودونکي ) ـ مو : نابودونکې ـ وگورئ : نابودېدل ـ

**نابوم** :- (ن + ب + و + م ) (صف ، مذ ) نابلد ، نااشنا ، نابومه ـ

**نابومه** :- (ن + ب + و + مَ ) (صفت ) نابلد ، ناواقف ، نااشنا ـ

**نابینا** :- (صف ، مذ ) ړوند ، بې سترگو ـ

**ناپاک** :- (ن + ا + پ + ا + ک ) (صف ، مذ ) د پاک ضد ، پلیت ، گنده ، ناولے
خیرن ، بې نماره ، بېلمازه ـ

**ناپاکتوب** :- (ن + ا + پ + ا + ک + ت+ و + ب ) (مذ ،مفرد ،اسم ) ناپـاکي ،
ناپاکتیا ، ناپـاکوالے ، پلیتوالے ، گنـده تـوب ، خیرن والے ، بـې نمـازي ،بـې
لمازي ـ

**ناپاکتیا** :- (ن + ا + پ +ا + ک + ت + ي + ا ) (اسم ،مفرد ،مو ) وگورئ :
ناپاکتوب ـ

**ناپاکوالے** :- (ن+ا+پ+ا+ ک + و+ ا+ل + ے ) (اسم ،مفرد ،مذ ) وگورئ :
ناپاکتوب ـ

**ناپاکي** :- (ن + ا + پ + ا + ک + ي ) (اسم ،مفرد ،مو ) وگورئ : ناپاکتوب ـ

**ناپام** :- ( ن + ا + پ + ا + م ) (مذ ) بې فکره ، بې خیاله ، ناپامه ـ

**ناپامه** :- (ن +ا+پ +ا+مَ ) (مفرد ،مذ ) بې پامه ، بې خیاله ، ناڅاپه ـ

**ناپامي** :- (ن + ا + پ + ا + م + ي ) (اسم ،مو ،مفرد ) (۱) بې خیالي ، بې پام ،
خیال نۀ کؤنه (۲) صفت ناپامه سره منسوب ـ

**ناپایاب** :- (ن + ا + پ + ا+ي+ ا + ب ) (صف ) ډوب ، ژور ، هغه چې پایاؤ ئې
معلوم نۀ وي ـ

**ناپایاؤ** :- (ن +ا+ پ + ا + ي + ا + و ) (صف ، ف ) وگوري : ناپایاب ـ

**ناپائیدار** :- (ن+ا+پ+ا+ي+ د+ا+ر ) (صف ) د پائیدار ضد ، ناپائیدونکے ،

کچه کمزورے شیز ، ډېر وخت نهٔ پاتې کېدونکے۔

**ناپدید** :- (ن+ا+پ+د+ي+د)(صف ، مذ ، مو) په نظر نهٔ راتلونکې ، معدوم۔

**ناپر** :- (ن+ا+پ+ر)(صف ،مذ) مضبوط ،قوي ،خړپس ، محتمند ،ناپړ۔

**ناپرسان** :- (ن+ا+پ+ر+س+ا+ن)(صف ، مذ) هغه ځاے چېرته چې د هېڅ عمل تپوس نهٔ کېږي۔

**ناپرمان** :- (ن+ا+پ+ر+م+ا+ن)(اسم مذ) يو قسم ګل۔

**ناپړ** :- (ن+ا+ن+ړ)(صف،مذ) وګورئ : ناپر۔

**ناپړانـد** :- (ن+ا+پ+ړ+ا+ن+د)(صف ،مذ) ډېر زيات کمزورے ، مړخپن ، انتهائي مانده ، مؤنث : ناپړانده۔

**ناپړيته** :- (ن+ا+پ+ړ+ي+ت)(مو ، اسم) بې هوده او بې موقعې خبره ، بې ځايه او بې وخته خبره ، ناشولته ناشوړه۔

**ناپسند** :- (ن+ا+پ+س+ن+د)(صف ،مذ) بې خوښې ، چې د خوښې مطابق نهٔ وي۔ناخوښه۔

**ناپکار** :- (ن+ا+پ+ک+ا+ر)(صف،مذ) بې ضرورته ، په کار نهٔ راتلونکے۔

**ناپوه** :- (ن+ا+پ+ه)(اسم ، مذ) جاهل ، نهٔ پوهېدونکے۔ناپويه ، ناپوهه ، ناپوهي ، جمع: ناپوهان۔

**ناپوهوالے** :- (ن+ا+پ+ه+و+ا+ل+ے)(اسم ، مذ ، مفرد) جهالت ، ناپوهي ، ماشومتوب ، ماشوم والے۔ مؤنث : ناپوهې۔

**ناپوهه** :- (ن+ا+پ+و+هَ)(صف ،مذ) وګورئ : ناپوه۔

**ناپوهي** :- (ن+ا+پ+و+هـ+ي)(اسم ،مفرد ،مو) ناپوهېدنه ، جهالت ، ناپويي۔

**ناپوي** :- (ن+ا+پ+ي)(اسم ،مذ ،مفرد) نهٔ پوهېدونکے۔

**ناپويي** :- (ن+ا+پ+و+ي+ي)(اسم،مفرد ،مو) نهٔ پوهېدنه۔

**ناپه ښاد** :- (ن+ا+پ+ښ+ا+د)(صف ، مذ) خفه ، ناراض ، ناخوشحال۔

**ناپېژندګلو** :- (ن+ا+پ+ي+ژ+ن+د+ګ+ل+و)(صف اسم ، مفرد) نااشنا ، هغه چې پېژندلے نهٔ شي۔ناواقف۔

**ناپېژندګلوي** :- (ن+ا+پ+ي+ژ+ن+د+ګ+ل+و+ي)(اسم،مفرد ،مو) نااشناتوب ، نابلدتيا ، ناواقفيت ، ناپېژندګلي۔

**ناپېژندګلي** :- (ن+ا+پ+ي+ژ+ن+د+ګ+ل+ي)(اسم ، مفرد ،مو) وګورئ : پېژندګلوي۔

**ناپېژندونکے** :- (ن+ا+پ+ي+ژ+ن+د+و+ن+ک+ے)(صف ،مذ) هغه چې پېژندګلو ئې نهٔ کېږي۔نااشنا ، ناواقف۔

**ناتار** :- (ن+ا+ت+ا+ر)(اسم ، مفرد ،مذ)(۱) زياتے ،ظلم ،جبر ،يرغل ، چپاؤ ۔(۲) په ماستو کښې له ماتې کړې شوې ډوډۍ نه جوړ کړے شوے خوراک۔

**ناتارګر** :- (ن+ا+ت+ا+ر+ګ+ر)(صف ،مذ) زياتے کونکے ،ظالم ، جابر۔

**ناترس** :- (ن+ا+ت+ر+س)(صف ،مذ ،مفرد) ظالم ، بې رحمه ، سخت زړے ، ناترسه۔

**ناتکۍ** :- (ن+ا+ت+ک+ۍ)(مو ،مفرد) صورت ، شکل ، شخصيت۔

**ناتکے** :- (ن+ا+ت+ک+ے)(صف ،مذ) يواځې ، بې جوړې ، طاق ۔ مؤنث : ناتکۍ ۔جمع : ناتکي۔

**ناتمام** :- (ن+ا+ت+م+ا+م)(صف ، مذ ،مفرد) نيمګړے ، نامکمل ، ناپوره۔

**ناتوان** :- (ن+ا+ت+و+ا+ن)(صف ، مذ ، مفرد) کمزورے ، بې زوره ، بې قوته۔

**ناتواني** :- (ن+ا+ت+و+ا+ن+ي)(مو ، مفرد) کمزورتيا ، نيمګړتيا ۔

**ناټ** :- (ن+ا+ټ)(اسم ،مفرد ،مذ) شوق ،خواهش ،رغبت ،محبت ،مينه۔

**ناټک** :- (ن+ا+ټ+ک)(اسم ، صف ، مفرد ، مذ) تماشه ، تېټر ، ډرامه ، لوبه ، د سېل ځاے ، د تماشې ځاے۔

**ناټکه** :- (ن+ا+ټ+ک)(صف) ناارامه ،پرېشانه ، سرګردان ،مضطرب۔

**ناټکۍ** :- (ن+ا+ټ+ک+ۍ)(اسم ، مفرد ، مو) يو قسم نقش يا ګل کاري چې د ټغر يا لمڅي په مېنځ کښې جوړولے شي۔

**ناټکے** :- (ن+ا+ټ+ک+ے)(اسم ، مفرد ، مذ) اداکار ،ايکټر ، لوبه يا ډرامه کونکے۔

**ناټه** :- (ن+ا+ټ+ه)(اسم ،مفرد ، مو) يو قسم سپين تندے لرونکې کوټره جمع : ناټي۔

**ناټيرلے** :- (ن+ا+ټ+ي+ر+ل+ے)(صف،مذ) کمزورے ، ناتوان ، مړخپن ، بې دسته۔جمع : ناټيرلي۔

**ناټۍ** :- (ن+ا+ټ+ۍ)(اسم مفرد ، مو) هغه لرګے چې د اوښ په پوزه کښې اچولے شي او مهار ورپورې تړلے شي۔

**ناټې** :- (ن+ا+ټې)(اسم،واحد ،صف) ناراست ، ناراسته ، سست۔

**ناجاڼ** :- (ن+ا+ج+ا+ڼ)(صف ، مذ ، مفرد) بې خبره ، نا خبره ، ناجانه ، هغه چې ځان ئې هسې بې خبره ساتلے وي۔

**ناجايز** :- (ن+ا+جا+ا+ي+ز)(صف ،مذ) ناروا ، نامناسب۔

**ناجغ** :- (ن+ا+ج+غ)(صف ،مذ ،مفرد) ناجغه ، نارک ، هغه غواړے چې د يوې کولو بلد نهٔ وي۔

**ناجنس** :- (ن+ا+ج+ن+س)(صف) بې ذاته ، بې جنسه ، جنس نهٔ لرونکے ، کمينه ، رذيل ، بې اصله۔

**ناجو** :- (ن+ا+ج+و)(اسم ، مفرد ، مذ) د صنوبر ونه۔

**ناجوړ** :- (ن+ا+ج+و+ړ)(صف ، مذ ،مفرد) ناساز ، ناجوړه ، بيمار ، رنځور۔

**ناجوړتيا** :- (ن+ا+ج+و+ړ+ت+ي+ا)(اسم ، مفرد ، مو) بيماري ، ناسازي ، رنځورتيا ، ناروغي۔

**ناجوړه** :- (ن+ا+ج+و+ړَ)(صف) وګورئ : ناجوړ۔

**ناجوړي** :- (ن+ا+ج+و+ړ+ي)(اسم،مفرد ،مو) وګورئ : ناجوړتيا ۔

**ناجه** :- (ن+ا+ج)(مفرد ، مو ، ج ــ ناجي) وړوکې څانګه۔

**ناجي** :- (ن+ا+ج+ي)(صف،مذ) نجات موندونکے ، خلاصے موندونکے ، معاف کړے شوے۔

**ناچ** :- (ن+ا+چ)(مفرد ، مذ) نڅا ، ګډا ، رقص ، ډانس۔

**ناچار** :- (ن+ا+چ+ا+ر)(صف ،مذ ،مفرد) هغه مواد چې چاپ شوي نهٔ وي ۔ ناطبع ، ناچاپه۔

**ناچار** :- (ن+ا+چ+ا+ر)(صف مذ ،مفرد) عاجز ، بې وسه ، خوار ، غريب ، مجبور ، محتاج ، ناچاره۔

**ناچاري** :- (ن+ا+چ+ا+ر+ي)(اسم ، مفرد ، مو) عاجزي ، بې وسي ، غريبي ، نېستي۔

**ناچاق** :- (ن+ا+چ+ا+ق)(صف ،مذ ،مفرد) ناجوړ ، بيمار ، بې خونده ، کمزورتيا ، مانده توب ، تپ والے۔

**ناچل** :- (ن+ا+چ+ل)(صف مذ) بې رواجه ، غېر مروج ، کوټه سيکه ، نهٔ چلېدونکې سيکه ، ناچله۔

**ناڅ** :- ن+ا+څ)(اسم مفرد ،مذ) ناچ ، ګډا ، رقص ، نڅا ، ډانس۔

**ناڅاپه** :- (ن+ا+څ+ا+پ)(مطلق فعل) سمدستي ، ناګهانه ، ناڅاپي ، سمه لاسه ، بې خبره۔

**ناڅاپي** :- (ن + ا + څ + ا + پ + ي) (صف ،مو، مفرد ) د ناڅاپه سره متعلق ، وګورئ : ناڅاپه.

**ناڅګر** :- (ن + ا + څ + ګ + ر ) (مذ ، مفرد ) ګډېدونکی ، ګډا کوؤنکی ، ناچ کوؤنکی.

**ناڅل** :- (ن + ا + څ +ل ) ( مصدر ) ګډېدل ، ناچ کول ، نڅا کول ، نڅېدل.

**ناڅيز** :- (ن + ا + څ + ي + ز ) (صف) بې کاره ، بې فائدې ، ناچيز.

**ناحق** :- (ن + ا + ح + ق ) (صف ، مذ ) د حق خلاف ، بې مناسبه ، نامناسبه بې ګټې ، بې فائدې.

**ناحيه** :- (ن + ا + ح + + ي ) (مو ، مفرد ) (۱) ملک ، سيمه ، علاقه ـ (۲) د زمکې ټوټه.(۳) ساحل د سمندر غاړه. (۴) طرف ، اړخ ، ډډه.

**ناخبر** :- (ن + ا + خ + ب + ر ) (صف،مذ ) هغه چې خبر ورته نه وي.ناواقف ، بې خبر. مؤنث : ناخبره.

**ناختلی** :- (ن + ا + خ + ت+ ل + ے ) (صف ، مذ ، ج ناختلي مؤ : ناختلې) هغه چې ختلی نه وي.

**ناخدا** :- (ن + ا + خ + د + ا ) (اسم ، مفرد ، مذ) مانړګی ، مانړی ، کشتۍ چلؤنکی.

**ناخلف** :- (ن + ا + خ + ل + ف ) (صف ، مذ) نالائق زوے ، بې ادبه او نافرمان زوے.

**ناخنه** :- (ن + ا + خ + ن ) (اسم مفرد ،مو) د سترګو يوه بيماري چې په کنجې د سترګو په ګوټونو کښې سپينه غوښه وشي.

**ناخوال** :- (ن + ا + خ + و+ ا + ل ) (صف ، مذ ، مفرد ) نامناسب ، بې سمونه.

**ناخواله** :- (ن + ا + خ + و + ا + ل ) (صف ، مو) نامناسبه ، بې سمونه ، سپکه او شرمناکه خبره. (۲) مجبوري ، ناخوښي (۳) زړۀ مړېدنه ، زړۀ نورېدنه.

**ناخوان** :- (ن + ا + خ + و + ا + ن ) (صف ، مذ ، مفرد ) ناخواند ، ناخوانده ، بې تعليمه،په ليک لوست نۀ پوهېدونکی ، جاهل بې سواده.

**ناخواند** :- (ن+ ا + خ + و + ا + ن + د ) (صف ،مذ ) وګورئ : ناخوان.

**ناخوانده** :- (ن + ا + خ + و + ا + ن + د ) (صف،مذ،مفرد ) وګورئ : ناخوان.

**ناخورا** :- (ن + ا + خ + و + ر + ا ) (صف ، مذ ) ناپاک ، ناولے.

**ناخوښ** :- (ن + ا + خ + و + ښ) (صف ، مذ ) هغه چې نۀ خوښېږي ، دلګير ، پرېشان ، غمګين.

**ناخوښه** :- (ن + ا + خ + و + ښ) (صف ، مو ، مفرد ) خفه ، غمګين ، پرېشانه.

**ناخوښي** :- (ن + ا + خ + و+ ښ + ي ) (مفرد ،مو ) خفګان ، پرېشاني ،ناراضي.

**ناخونه** :- (ن+ا+خ + و + ن ) (مفرد ،مو (ج ناخونې ) (۱) د انګورو په څېلۍ کښې نرے تار (۲) د سترګو يو قسم بيماري.

**نادار** :- (ن + ا + د + ا + ر ) (صف ، مذ ) هېڅ نۀ لرونکی ، غريب ، عاجز ، نېستمند ، لاچار ، بې شتو.

**نادارتوب** :- (ن + ا + د + ا + ر + ت + و + ب ) (اسم،مفرد ، مذ) هېڅ نۀ لرنه ، غريبي ، عاجزي ، ناداري ، نېستي.

**ناداري** :- (ن + ا + د + ا + ر +ي ) (مفرد ،مو) غريبي ،عاجزي ، نېستي.

**نادان** :- (ن + ا + د + ا + ن ) (صف ،مذ ،مفرد ، مو : نادانه ) کم عقل ، ناپوهه ، ساده.

**ناداني** :- (ن + ا + د + ا + ن + ي ) (اسم ، مفرد ، مو ) کم عقل توب ، ناپوهي ، ساده توب.

**نادر** :- (ن + ا + د + ر ) (صف ،مذ ،مفرد ) (۱) ناياب ، کم ياب. (۲) ښـــۀ ، غوره ، عجيبه.

**نادرست** :- (ن + ا + د + ر + س + ت ) (صف،مذ ) د درست ضد ، ناسم ، نامکمل ، وران ، نيمګړے.

**نادم** :- (ن + ا + د + م ) (اسم ،صف ،مذ ) پښېمان ، ستومان.

**نادوده** :- (ن + ا + د + و + د ) (صف ،مذ ) غېر مهذب ، ناديده ، لالچي ، د رسم او رواج نه ناخبر.

**ناديدک** :- (ن + ا + د + ي + د +ک ) (صف مذ ) (۱) وږ سترګے ، اروا وږے ، لالچي (۲) کم اصل ، رذيل.

**ناديده** :- (ن + ا + د + ي + د ) (صف ، مذ ) نادوده ، ناليدلے ، وږ سترګے ، لالچي.

**ناديده توب** :- (ن +ا+د+ي+د+ ه + ت + و + ب) (اسم ، مفرد ،مذ) د ناديــــده جوړېدو حالت.

**نار** :- (ن + ا + ر ) (اسم ، مفرد ، مذ) اور ، يور ، وېر.

**نار** :- (ن + ا + ر ) (صف ،مذ ،مفرد) (۱) وږے ، نهړ.(۲) نهر ، لويه والۀ.

**ناراحت** :- (ن + ا + ر + ا + ح + ت ) (صف ،مذ ،مفرد ) ناارامه ، ستړے ، ستومانه ، راحت نۀ لرونکی.

**ناراست** :- (ن + ا + ر + ا + س + ت ) (صف ، مفرد ،مذ ) سست ، ناتړے ، لټ.

**ناراسته** :- (ن + ا + ر + ا + س + ت ) (صف ، مذ ، مو ) وګورئ : ناراست.

**ناراستي** :- (ن + ا + ر + ا + س + ت + ي ) (اسم ، مفرد ، مو) (۱) لټوالے ، سستي ، ناراستيا. (۲) ستوماني.

**ناراستيا** :- (ن +ا+ر+ا+س+ ت+ي+ ا ) (اسم،مفرد ، مو) وګورئ : ناراستي.

**ناراض** :- (ن + ا + ر + ا + ض ) (صف ،مذ ،مفرد ) خفه ، مرور ، ناراضا ، ناراضي ، ډډ.

**ناراضتوب**:- (ن +ا+ر+ا + ض + ت + و + ب ) (مفرد ، مذ ) خفګان ، مرورتيا ، ډډتوب.

**ناراضګي** :- (ن+ا+ر+ا+ ض + ګ +ي ) (اسم،مفرد ،مو) وګورئ : ناراضتوب.

**ناراضي** :- (ن + ا + ر + ا + ض + ي ) (اسم ،مفرد ،مو) (۱) وګورئ : نارضتوب. (۲) صف.وګورئ : ناراض.

**نارام** :- (ن + ا + ر+ ا + م ) (صف ،مفرد) بې ارامه ، ارام نۀ لرونکی ، ناوزګار.

**نارامتيا** :- (ن + ا + ر + ا + م + ت + ي + ا ) (اسم ، مفرد ، مو) ارام نۀ لرنه ، بې ارامي ، نارامي ، سرګرداني ، ناوزګاري.

**نارامه** :- (ن + ا + ر + ا + م + ه ) (صف ،مذ ،مو) وګورئ نارام.

**نارامي** :- (ن + ا + ر + ا + م + ي ) (اسم ،مفرد ، مو ) وګورئ : نارامتيا.

**نارسا** :- (ن + ا + ر +س+ا) (صف،مفرد) د رسا ضد ،وګورئ : خطا.

**نارسايي** :- (ن + ا + ر + س +ا+ي ) (اسم،مفرد ،مو) نۀ وسېدنه ، دخل نۀ کېدنه.

**نارضا** :- (ن + ا + ر + ض + ا ) (صف ، مذ ) وګورئ : ناراض.

**نارضامندي**:- (ن+ا+ ر + ض + ا + م + ن+د+ي) (اسم،مفرد ،مو) وګورئ : نارض توب

**نارګل** :- (ن + ا + ر + ګ + ل ) (اسم ،مفرد ،مذ) د انار ګل.

**نارګوړے** :- (ن + ا + ر + ګ + و +ړ+ ے ) ووړوکے انار ، انارګوټے.

**نارګهل** :- (ن + ا + ر + ګ + ه+ ل ) ( مفرد ،مذ) ناريال ، کوپره.

**نارګيل** :- (ن + ا + ر + ګ+ي+ل ) (اسم،مفرد ،مذ) کوپره ، ناريال.

**نارل** :- (ن + ا + ر+ ل ) (مصدر، لازم) (۱) نعره کول ، غږ کول ، نعره وهل. (۲) اذان کول ، بانګ کول ، بانګ وئيل.

**نارن** :- (ن + ا + ر+ ن ) (حاصل مصدر) وګورئ : نارل.

**نارنج** :- (ن + ا + ر+ ن + ج ) (اسم ،مفرد ،مذ ،ج : نارنجان) د سنګترې د خاندان يو بوټے او د هغۀ مېوه ، نباتاتي نوم

**نارنجي** :- (ن + ا + ر+ ن + ج + ي ) (صف) د نارنج غوندې رنګ لرونکی ، زېړبخن.

**نارنګ** :- (ن + ا + ر + ن + ګ)(حاصل مصدر) وګورئ : نارل.

**نارنهور** :- (ن+ا+ر+ن+هـ+و+ر)(مذ ،مفرد ، مو: نهره ، نهوره) وړے، بالکل نهر.

**ناروا** :- (ن + ا + ر + ن + و + ا)(صف ،مذ ،مفرد) ناجائزه ، نامناسب ، د مذهب شرعي نه خلاف ، د روا ضد.

**نارو** :- (ن + ا + ر + و)(اسم ، مفرد ، مذ) يو قسم خطرناکه بيماري چې د ناولو مردارو ، سخا اوبو د څښلو نه پيدا کېږي.

**ناروغ** :- (ن + ا + ر + و + غ)(صف ،مفرد)(۱) بيمار ، ناروغه ، رنځور ، ناساز (۲) وران.

**ناروغتيــا** :- (ن + ا + ر + و + غ + ت + ي + ا)(اســم ، مفرد ،مــو) بيمــاري ، ناجوړتيا ، ناسازي ، ناروغي ، ناروغوالے.

**ناروغي** :- (ن + ا + ر + و + غ + ي)(مو ،مفرد) وګورئ : ناروغتيا.

**ناره** :- (ن + ا + ر)(مفرد ، مو) اواز ، غږ ، چغه.

**نارينه** :- (ن + ا + ر + ي + نَ)(صف ، مذ ، مفرد)(۱) سړے ، مرد .(۲) بهادر ، تکړه ، تورزن.

**نــاري ســوري** :- (ن +ا+ ر + ي + س + و + ر + ي)(اسم ، جمع) چغې سورې ، شور زوږ ، ژړا فرياد.

**نــارے** :- (ن + ا + ر + ے)(اسم ، مـذ ،مفرد)(۱) د څاښت خوراک ، د سحر خوراک. (۲) هغه خوراک چې د وادهٔ په ورومبنو دربو ورځو او شپو کښې په ناوې پسې د مـور پـلار د کـوره راځي . (۳) اس لـه روزانـه ورکـؤنکے خوراک.

**ناړ** :- (ن + ا + ړ)(اسم ، مفرد)د غنمو يا اوربشو دروځه ، دروځه.

**ناړام** :- (ن + ا + ړ + ا + م)(صف ، مفـرد ، مـذ)(۱) مسـت ، سرکښ ، ضـدي (۲) ناارام.

**نــاړام تــوب** :- (ن + ا + ړ + ا + م + ت + و + ب)(اســم ، مفرد ،مــذ) ضــد ، سرکشي ، ناړامي.

**ناړک** :- (ن + ا + ړ + ک)(صف ، مذ ،مفرد) هغه غوئے چې د يوې کولـو بلد نهٔ وي.ناجغ.

**ناړن** :- (ن + ا + ړ + ن)(صف ، مـذ ، مفـرد) هغـه څوک چې د خولې ئې تـل لاړې بهېږي.لاړجن.

**ناړه** :- (ن + ا + ړ + ه)(اسم ، مفرد ،مو) د خولې څلبښنـاکې اوبـهٔ ، لعـاب ، لاړه ، جمع : ناړې.

**ناړه** :- (ن + ا +ړ+ه)(اسم،واحد ،مو)د بوټي جرړه ، جمع ناړې.

**ناړيک** :- (ن + ا + ړ + ي + ک)(اسم ، صف) وګورئ : ناړک.مؤنث : ناړيکه.

**نــاړې** :- (ن + ا + ړ + ې)(اسم ، جمع ، مـؤ) د نـاړې جمـع ، لاړې ، توکـانې ، د خولې لعاب.

**ناړۍ** :- (ن + ا + ړ + ی)(اسم ، واحد ، مؤ)(۱) د غنمـو يـا اوربشـو بـې وږي اوچ بـوټے دروځـه ، (۲) د بـوټ تسمه.(۳) د څرمنـې سربانډے ، بدريزه.(۴) د دوؤ غرونو تر منځه پرته سرسبزه وادي.

**ناړے** :- (ن + ا + ړ + ے)(اسم،واحد) ډنډړ ، غوړګه ، ډنډړکے ،جمع : ناړې.

**ناز** :- (ن + ا + ز)(اسـم ، واحد ،مـذکر)(۱) نخره ، غمـزه . (۲) مينـه ، محبت (۳) غرور ، فخر.(۴) لوئي ، عزت.

**نازان** :- (ن + ا + ز + ا + ن)(صف) ناز کونکے ، فخر کونکے.

**نــازبرادري** :- (ن + ا + ز + ب + ر + ا + د + ري)(اسـم ،واحـد ، مـؤ) نـاز وړنـه ، نخرې زغمنه ، غمزې برداشت کونه.

**نازبو** :- (ن + ا + ز + ب + و)(اسم ، واحد ، مذکر) يو قسم خوشبودار بوټے.

**نازبين** :- (ن + ا + ز + ب + ي + ن)(صف) په نـازونو لـوے شـوے ، د نـاز کولـو بلد ، نيازبين ، نازنين ، نازپرور.

**نازبين توب** :- (ن+ا + ز + ب + ي + ن + تو+ب)(اسم واحد ،مذکر) پــه نــاز لوئېدنه ، ناز کونه ، نيازبين توب.

**نــازپرور** :- (ن + ا + ز + ب + ر + و + ر)(صــفت) وګــورئ : نــازبين . مؤنـث : نازپروره.

**نازغوره** :- (ن + ا + ز + غ + و + ر)(واحد ،مؤنث) يـو قسم خطرناکـه دانـه چې بنده ترې مري ، خوراکې تنکې.

**نــازک** :- (ن + ا + ز + ک + ه)(صـفت)(۱) باريـک . کمـزورے ، کچـه ، لطيـف (۲) پېوست ، نرم (۳) ګران ،مشـکل (۴) تېـز، تُند (۵) خطرناکـه .مؤنث نازکه

**نازک اندام** :- (ن + ا+ز+ک+ا + ن + د +ا+م)(صفت) نـازک اندامونـه لـرونکے ، نرم او کمزورے وجود لرونکے ، نازک بدن.مؤنث : نازک اندامه.

**نــازک بــدن** :- (ن + ا + ز + ک + ب+د+ن)(صـفت)(۱) وګـورئ : نـازک انـدام (۲) معشوق ، محبوب.

**نازکتوب** :- (ن + ا + ز + ک + ت + و + ب)(اسم ، واحد ، مـذکر) د نـازک کېـدو حالت،نازک کېدنه ، نزاکت ، نازکولے ، نازکي .

**نازک مزاج** :- (ن + ا + ز + ک + م + ز + ا + ج)(صفت) بدخويـه ، بـد مـزاج ، لـه خويه تريخ ، بد دماغ ، مؤنث : نازک مزاجه.

**نازک مزاجي** :- (ن +ا+ز+ک+ م + ز + ا + ج + ي)(اسم ،واحد ، مـؤ) بـدخوئي ، بدمزاجي ، بد دماغي.

**نازکولے** :- (ن + ا + ز + ک + و + لے)(اسم ،واحد ،مذکر) وګورئ : نازکتوب.

**نازکي** :- (ن + ا + ز + ه + ک + ي)(اسم ،واحد ،مؤ) وګوري : نازکتوب.

**نــازل** :- (ن + ا + ز+ل)(صـف)(۱) راکوزېدونکے ،ښکته راتلـونکے .(۲) راکـوز شوے ، له بره ښکته رالېږلے شوے.وارد شوے.

**نازلول** :- ( ن + ا + ز + ل + و + ل)(مصدر متعدي) راکوزول ، لـه بـره رالېږل ، ښکته راستول ، واردول.

**نازلول** :- ( ن + ا + ز + ل + و+ن)(حاصل مصدر ) وګورئ : نازلول.

**نــازلونکے** :- ( ن + ا + ز + ل + و + ن + کے)(اسم فاعـل ،واحد ،مـذکر) جمـع : نازلونکي ، مؤنث نازلونکې ، وګوري : نازلول.

**نازلونګ** :- ( ن + ا + ز + ل + و + ن + ګ)( حاصل مصدر ) وګورئ : نازلول.

**نازلونه** :- (ن + ا + ز + ل + و + ن)( حاصل مصدر ) وګورئ : نازلول.

**نازليـــدل** :- (ن + ا + ز + ل + ي + د + ل)(مصـــدر لازم) راکوزيـــدل ، د بـــره راتلل ، وارديدل.

**نازليدل** :- (ن + ا + ز + ل + ي + د + ن)( حاصل مصدر ) وګوري : نازليدل.

**نازليدنګ** :- (ن + ا + ز+ل+ي+د +ن + ګ)(حاصل مصدر) وګوري : نازليدل.

**نازليدنه** :- (ن + ا + ز + ل + ي + د + ن)(حاصل مصدر ) وګوري : نازليدل.

**نازليدونکے** :- (ن + ا + ز + ل + ي + د +وو + ن +کے)(اسم فاعـل ، واحد ، مذکر) جمع : نازليدونکي ، مؤنث نازليدونکې.وګورئ : نازليدل.

**نازليده** :- (ن + ا + ز + ل + ي + د)(حاصل مصدر ) د ماضـي استمراري د واحد غايب صيغه ، وګورئ نازليدل.

**نازمن** :- (ن + ا + ز + م + ن)(صفت) نازمند ،نيازمن ،نيازمند .(۱) حاجتمند ، ارزومند ،د ليدو اجازت غوښتونکے ، د حاضرېدو خواهش لرونکے . (۲) عـاجزي او انکسـاري کـونکے ،دا لفـظ مـتکلم د خپـل ځـان دپـاره د انکسار په توګه مخاطب ته استعمالوي.

**نـــــازمنتوب** :- (ن + ا + ز + م + ن + ت + و + ب)(واحد ،مـــذکر) وګـــورئ : نازمندي.

**نازمند** :- (ن + ا + ز + م + ن + د)(اسم ، صفت) وګورئ : نازمن.

**نازمندي** :- (ن + ا + ز + م + ن + د + ي)(اسم ،واحد ،مؤ) نازمني ، نيازمني ، نيازمندي ـ(۱) ارزومند ، د ليدو خواهش لرنه ، اجازت غوښتنه ـ (۲) عاجزي ، انکساري۔

**نازمني** :- (ن + ا + ز + م + ن + ي)(اسم ،واحد ، مؤ) وګورئ : نازمندي۔

**نازنخره** :- (ن + ا + ز + ن + خ + ر)(اسم مرکب) قېنچ مقېنچ ، ناز و ادا او نخره۔

**نازنين** :- (ن + ا + ز + ن + ي + ن)(صفت) (۱) ناز کونکی ، نيازبين ، نازبين (۲) ښکلی ، ښائسته ،محبوب ، معشوق۔مؤنث : نازنينه۔

**نازول** :- (ن + ا + ز + و + ل)(مصدر متعدي)(۱) په ناز ساتل ، په ډېره مينه لويول۔(۲) چا سره د ډېرې مينې اظهار کول۔

**نازولی** :- (ن + ا + ز + و + ل + ی)(صفت) جمع : نازولي ، مؤ : نازولې ، وګورئ نازول۔

**نازون** :- (ن + ا + ز + و + ن)(حاصل مصدر) وګورئ : نازول۔

**نازونکی** :- (ن + ا + ز + و + ن + کی)(اسم ،فاعل ،واحد ،مذکر) جمع : نازونکي ، مؤنث نازونکې ، وګورئ : نازول۔

**نازونګ** :- (ن + ا +ز+و +ن + ګ)(حاصل مصدر) وګورئ : نازول۔

**نازونه** :- (ن + ا + ز + و + ن + ه)(حاصل مصدر) وګورئ : نازول۔

**نازيت** :- (ن + ا + ز + ي + ت)(اسم ،واحد ،مذکر) د هټلر امرانه نظريه او نظامت۔

**نازېبا** :- (ن + ا + ز + ې + با)(صف) ښه نه ښکاربدونکی ، خراب ، نامناسب۔

**نازېدل** :- (ن + ا + ز + ې + د + ل)(مصدر لازم)(۱) فخر کول ، ناز کول ـ (۲) ناز و ادا کول ، نخره کول۔

**نازېدلی** :- (ن+ا+ز + ې + د + لی)(صفت ،مفعول ،واحد ،مذکر) جمع: نازيدلي ، مؤنث : نازيدلې۔وګورئ : نازېدل۔

**نازېدن** :- (ن + ا + ز + ې + د + ن)(حاصل مصدر) وګوري : نازېدل۔

**نازېدنګ** :- (ن + ا + ز + ې + د + ن + ګ)(حاصل مصدر) وګورئ : نازېدل۔

**نازېدنه** :- (ن + ا + ز + ې + د + ن + ه)(حاصل مصدر) وګورئ : نازېدل۔

**نازېدونکی** :- (ن + ا + ز + ې + دو + ن + کی)(فاعل ،واحد ،مذکر) جمع : نازېدونکي ، مؤنث : نازېدونکې ـوګوري : نازېدل۔

**نازېدهٔ** :- (ن + ا + ز + ې + دهٔ)(حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غايب صيغه) وګوري : نازېدل۔

**ناژغ** :- (ن + ا + ژ + غ)(صفت) وګورئ : نارک۔

**ناژهٔ** :- (ن + ا + ژ)(صفت) وګورئ : نارهٔ۔

**نارهٔ** :- (ن + ا + ړ)(صفت) ناژهٔ ، ناويلي ، چکه (غوري)۔

**ناس** :- (ن+ا+ س)(اسم ،جمع) د اناس مخفف ،بندګان ،خلق ،انسانان (عربي)۔

**ناس** :- (ن + ا + س)(اسم ،واحد ،جمع ،مذکر) نسوار ،ګڅاري (هندي)۔

**ناس** :- (ن + ا + س)(صفت) تباه ،برباد ،تالا (هندي)۔

**ناساز** :- (ن + ا + س + ا + ز)(صفت) (۱) ناجوړ ، بيمار ، رنځور (۲) ناموافق ، مخالف ، ناموزون۔

**ناسازګار** :- (ن + ا + س + ا + ز + ګ + ا + ر)(صفت) هغه چې راس نهٔ وي۔غېر موافق ، مخالف ، ناموزون۔

**ناسازه** :- (ن + ا + س + ا + ز + ه)(اسم ،واحد ،مؤنث) (۱) ناکرده ، زياتی ، ناروا ـ(۲) صفت ،د ناساز مؤنث : وګوري : ناساز ـ(۳) ورانی ، مخالف ، ناسازي۔

**ناسازي** :- (ن + ا + س + ا + ز + ی)(اسم ،واحد ،مؤنث) (۱) بيماري ، جوړتيا (۲) مخالفت ، ورانی۔

**ناسپاس** :- (ن + ا + س + پ + ا + س)(صفت) شکرنهٔ کونکی ، ناشکره ـ(م ـ فارسي)۔

**ناسپاسي** :-(ن + ا + س + پ + ا + سي)(اسم ، واحد ،مؤنث) ناشکري ، نابېمني ، شکر نهٔ کونه۔

**ناست** :- (ن + ا + س + ت)(صفت) د ولاړ ضد ـ(۱) په ګونډو يا د جسم په وروستی حصه د ارام دپاره ځای نيونکی ـ(۲) په زمکه يا ونه د پنجو په سر ځای نيونکی ـ(۳) دستبردار ، د چا مقابله پرېښودونکی ـ (۴) محتاج ، حاجتمند ـ(۵) زمکې څهٔ ځای دېوال وغېره له خپله حده په زمکه کښې ننوتی ـ ښخ شوی۔

**ناست پاست**:- (ن+ا+س+ت+پ + ا + س + ت)(صفت) تعلق لرونکی ، ناستی پاستی کونکی ، ناست ولاړ ،د ناستي پاستي ملګری ، ناستکونی ،ناسته پاسته کونکی۔

**ناستک** :- (ن + ا + س + ت + ک)(اسم واحد ،مذکر) د ناستي ځای ،کرسی ، تخته ،کټکی وغېره (افغانستان)۔

**ناستکونی** :- (ن + ا + س + ت + ک + و + نی)(صفت) ناسته پاسته کونکی ، د ناستي ملګری ، جمع ناستکوني ، مؤنث ناستکونې۔

**ناستل** :- (ن +ا+س+ ت + ل)(مصدر لازم) کښېناستل (عاميانه)۔

**ناستوګنه** :- (ن + ا + س + ت + و + ګ + ن)(اسم واحد ،مؤنث) ناسته پاسته ، تعلق،ناستی پاستی ناستوګه ، ناسته ولاړه۔

**ناستوګه** :- (ن + ا + س + ت + و + ګ + ه)(اسم واحد ،مؤنث) وګورئ : ناستوګنه۔

**ناستون** :- (ن+ا+س+ ت + و + ن)(اسم واحد ،مذکر)(۱) وګورئ : ناستوګنه (۲) وګورئ ناسته۔

**ناسته** :- (ن + ا + س + ت + ه)(واحد ، مؤنث) ناستی (۱) د کښېناستو حالت (۲) نشست ، جلسه ـ(۳) تعلق ، ناستوګنه ، ناسته پاسته ـ(۴) اودس ماتی ، رفع حاجت۔

**ناسته پاسته** :- (ن+ا+س+ت+پ + ا + س + ت)(اسم مرکب مؤنث)(۱) ناستی پاستی ،تعلق ،ناسته ولاړه ،ناستوګنه (۲) د ناستي طريقه ،چل۔

**ناستی** :- (ن + ا + س+ ت+ ی)(اسم واحد ،مذکر) وګورئ : ناسته۔

**ناستی پاستی** :- (ن +ا+س+ت + ی + پ + پ+ا + س + ت + ی)(اسم ، مرکب) وګورئ : ناسته پاسته۔

**ناسخ** :- (ن+ا+ س + خ)(۱) ليکونکی ،کاتب ـ (۲) منسوخونکی ، رد کونکی ـ (۳) ورانونکی۔

**ناسره** :- (ن + ا + س + ر)(صفت) کوټه ، نهٔ چلېدونکی ، قلپ۔

**ناسکه** :- (ن + ا + س + ک)(صفت) د سکه يا حقيقي ضد ،د دوېمې مور يا دوېم پلار اولاد ، د دوېمې ښځې يا دوېم خاوند اولاد ، د مور دوېم خاوند يا د پلار دوېمه ښځه وغېره وغېره۔

**ناسم** :- (ن + ا + س + م)(صفت) د سم ضد ، غلط ، وران۔

**ناسوب** :- (ن + ا + س + و + ب)(صفت) ناموجود ، غېرحاضر ، غېر موجود غائب

**ناسوت** :- (ن + ا + س + و + ت)(اسم ،واحد ،مذکر)(۱) عام اجسام يا جسمونه ، دنيا ـ(۲) څرګند عبادت ، شريعت۔

**ناسوتي** :- (ن + ا + س + و + ت + ي)(صفت) د ناسوت سره نسبت لرونکی ، وګورئ : ناسوت ـ

**ناسور** :- (ن + ا + س + و + ر)(اسم،واحد ،مذکر) نهٔ جوړېدونکی زخم۔

**ناسولټ** :- (ن + ا + س + و + ل + ټ)(صفت) بدشکله ، بې ډوله ، مؤنث ناسولټه۔

**ناسونت** :- (ن+ا+س+و+ن+ت)(صفت)(۱) څوک د سنت مطابق ترې خُته نهٔ وي پرېکړے شوې.شوپا.(۲) جاهل ، شوپړ.

**ناسيال** :- (ن+ا+س+ي+ا+ل)(صفت)(۱) هغه څوک چې د چا سره سيال نهٔ وي.د چا همسر نهٔ وي.(۲) د انار پوستکے.(۳) کچه انار.(۴) يو قسم اتش بازي.

**ناسيت** :- (ن+ا+س+ي+ت)(اسم ،واحد ،مذکر) بدبختي ، بدنصيبي ، شامت.

**ناشپاتي** :- (ن+ا+ش+پ+ا+تي)(اسم واحد/ جمع مؤنث) د ناک او ټانګو يو قسم يوه ونه او د هغې مېوه.نشپاتي ، نباتاتي نوم پائرس کميونس (Pyrus Communis).

**ناشته** :- (ن+ا+ش+ت)(اسم واحد ،مؤنث) د سحر خوراک ، د ورځې ورومبے خوراک.

**ناشدني** :- (ن+ا+ش+د+ن+ي)(صفت) (۱) نهٔ کېدونکے،ناشونے ، د نهٔ کېدو قابل. (۲) قابل افسوس ، له افسوسه ډک.

**ناشده** :- (ن+ا+ش+د+ه)(صفت) نهٔ کېدونکے ، ناممکن ، ناشونے ناشوده.

**ناشر** :- (ن+ا ش+ر)(صفت) کتابونه چاپونکے او خرڅونکے ، خورونکے ، د اشاعت کار کونکے.جمع : ناشران ، مؤنث : ناشره.

**ناششته** :- (ن+ا+ش+ش+ت)(اسم ، واحد ، مؤنث) وګورئ : ناشيشته.

**ناشکوت** :- (ن+ا+ش+ک+ر+ت)(صفت) شکر نهٔ کونکے ، ناسپاس ، ناشکرته ، ناشکره.

**ناشکرته** :- (ن+ا+ش+ک+ر+ت)(صفت ،مذکر ،مؤنث) وګورئ: ناشکرت.

**ناشکره** :- (ن+ا+ش+ک+ر+ه)(صفت) وګورئ : ناشکرت.

**ناشکري** :- (ن+ا+ش+ک+ر+ي)(اسم ،واحد ،مؤنث) شکر نهٔ ويستنه ، شکريه نهٔ ادا کونه د چا د ښېګړې مننه نهٔ کونه.

**ناشناخت** :- (ن+ا+ش+نا+خ+ت)(صفت) هغه چې پېژند ګلو ئې نهٔ کېږي . ناشناس ، نااشنا ، ناشناخته.

**ناشناخته** :- (ن+ا+ش+نا+خ+ت)(صفت ،مذکر ،مؤنث) وګورئ: ناشناخت.

**ناشناس** :- (ن+ا+ش+نا+س)(صفت) وګورئ : ناشناخت.

**ناشنائي** :- (ن+ا+ش+نا+ئي)(اسم،واحد ،مؤنث) وګورئ : نااشناتوب.

**ناشوده** :- (ن+ا+ش+و+د)(صفت) وګورئ : ناشده.

**ناشوډت** :- (ن+ا+ش+و+ډ+ت)(صفت) بې تهذيبه ، جاهل ، شاړ شپړ ، ناشوړت ، ناشولت ، ناشولټ ، ناشوډته ،ناشوړته ،ناشولټه ،ناشولته.

**ناشوډته** :-(ن+ا+ش+و+ډ+ت)(اسم صفت ،مذکر ،مؤنث) وګورئ: ناشولته.

**ناشوړت** :- (ن+ا+ش+و+ړ+ت)(صفت) وګورئ : ناشوډت.

**ناشوړته** :- (ن+ا+ش+و+ړ+ت)(صفت ،اسم ،مذکر ، مؤنث) وګورئ: ناشولته.

**ناشولت** :- (ن+ا+ش+و+ل+ت)(صفت) وګورئ : ناشوډت.

**ناشولتوب** :- (ن+ا+ش+و+ل+ت ، و+ب)(اسم،واحد ،مذکر) بې تهذيبي ، جهالت ، ناشولټتوب.

**ناشولته** :- (ن+ا+ش+و+ل+ت)(صفت ،مذکر ،مؤنث)(۱) وګورئ: ناشوډت . (۲) اسم ، فضول خبره ، بې کاره خبره ،بکواس،ناشوړته ، ناشوډته بې تهذيبه ، خبره ، ناشولټه.

**ناشولټ** :- (ن+ا+ش+و+ل+ټ)(صفت) وګورئ : ناشوډت.

**ناشولټتوب** :- (ن+ا+ش+و+ل+ټ+تو+ب)(صفت ،اسم ،واحد ،مذکر) وګورئ : ناشولتوب.

**شولټه** :- (ن+ا+ش+و+ل+ټ)(صفت اسم مؤنث) وګورئ : ناشولته ، جمع ناشولټې.

**ناشونکے** :- (ن+ا+ش+و+ن+کے)(صفت) جمع ناشونکي ، مؤنث: ناشونکې ،نهٔ کېدونکے ،ناممکن ،ناشونے،ناکړدونے.

**ناشونے** :- (ن+ا+ش+و+ن+ے)(صفت) جمع ناشوني.مؤنث : ناشونې، وګورئ : ناشونکے.

**ناشي** :- (ن+ا+ش+ي)(صفت)(۱) پېداکېدونکے ، شروع کېدونکے (۲) څرګندېدونکے ، ښکاره ،واضع.

**ناشيشته** :- (ن+ا+ش+ي+ش+ت+ه)(اسم واحد ،مؤنث) د غنمو د مغز نه جوړ کړے شوي ست ، ناششته ، نشاسته.

**ناشے** :- (ن+ا+ش+ے)(اسم ،واحد ،مذکر) يو قسم ترخه دوړه چې په سپېږمو راکښلے شي.

**نابن** :- (ن+ا+ښ)(اسم،واحد ،مذکر)داړه ، جمع نابنونه.

**نابناد** :- (ن+ا+ښ+ا+د)(صفت) هغه چې خوشحال نهٔ وي ، غمزده ، نامراد ،غمزپلے،خفه ،ناخوښ ، ناخورسند ، مؤنث : نابناده.

**نابنمني** :- (ن+ا+ښ+م+ن+ي) (اسم واحد ،مؤنث) ناشکري ،احساس نه منه ، ناسپاسي.

**نابنده** :- (ن+ا+ښ+ن+د)(صفت ،مذکر،مؤنث) بې ځايه ،نامناسب ، ناموزون، نامعقول ، جمع نابنندي ، نابنندې.

**نابنے** :- (ن+ا+ښ+ن+ے)(صفت) ناکاره ، ناساز ، خراب ، وران ، جمع : نابنني ، مؤنث نابننې.

**ناصاف** :- (ن+ا+ص+ا+ف)(صفت ) د صفا ضد .(۱) ناپاکه ، ناصافه ، خيرن، ګنده.(۲) هغه چې ګډون په کښې شوے وي.

**ناصافه** :- (ن+ا+ص+ا+ف+ه)(صفت ،مذکر ،مؤنث) وګورئ : ناصاف.

**ناصبور** :- (ن+ا+ص+ب+و+ر)(صفت) صبر نهٔ کونکے ، بې صبره ، مؤنث : ناصبوره.

**ناصح** :- (ن+ا+ص+ح) صفت نصيحت کونکے ،صلاح کار ،واعظ.

**ناصر** :- (ن+ا+ص+ر)(صفت) مدد کونکے ، حامي ، معاون ، مددګار ، مؤنث : ناصره.

**ناطق** :- (ن+ا+ط+ق)(صفت)(۱) خبرې کونکے ، د خبرو يا ګويايي قوت لرونکے . (۲) عقل لرونکے ،د شعور خاوند . (۳) کلک ، مضبوط ، مستحکم.(۴) غلے کونکے ، لاجوابه کونکے.

**ناطقه** :- (ن+ا+ط+ق+ه)(اسم ، واحد ، مؤنث) د خبرو کولو قوت ، قوت ګويائي

**ناظر** :-(ن+ا+ظ)(صفت)(۱) نظر کونکے ، کتونکے.(۲) نګهبان ، محافظ. (۳) د دفتر محافظ ، منېجر. (۴) ايجړا ، هيجړا ، خواجه سرا ، لښتي ، جمع ناظران.

**ناظره** :- (ن+ا+ظ+ه) (اسم ، واحد ، مؤنث)(۱) د ليدو قوت .(۲) قرآن شريف لوستنه.

**ناظم** :- (ن+ا+ظ+م)(صفت)(۱) نظم ليکونکے. (۲) انتظام کونکے ، د کار مشر.(۳) سبکرټري.(۴) ګورنر ، جمع : ناظمان.

**ناعاقبت انديش** :- (ن+ا+عا+ق+ب+ت+ا+ن+د+ي+ش)(صفت) د انجام سوچ نهٔ کونکے ، د نتيجې فکر نهٔ کونکے.

**ناعلاج** :- (ن+ا+ع+لا+ج)(صفت) لاعلاج ،ناعلاجه (۱) هغه چې علاج ئې نهٔ شي کېدے ، نهٔ رغېدونکے.(۲) ناشونے ، ناممکن.

**ناغ** :- (ن+ا+غ) (اسم، واحد، مذکر) (۱) کبر، لوئي. (۲) نخره، مکېز، قېنج. (۳) پُشت، خاندان.

**ناغس** :- (ن+ا+غ+س) (صفت) (۱) خېرن، خچن، ناولے. (۲) کوتړه، ناقص، قلب، مؤنث: ناغسه.

**ناغښتلے** :- (ن+ا+غ+ښ+ت+لے) (صفت) کچه (تار وغېره) چې تاؤ نهٔ وي ورکړے شوے. چې غښتلے شوے نهٔ وي. ناغښتے.

**ناغښتے** :- (ن+ا+غ+ښ+ت+ے) (صفت) وګورئ: ناغښتلے.

**ناغن** :- (ن+ا+غ+ن) (اسم، واحد، مذکر) وګورئ: نقد.

**ناغوره** :- (ن+ا+غ+و+ر) (صفت، مذکر، مؤنث) ناخوښ، ناپسند، ناخوښه.

**ناغوړنده** :- (ن+ا+غ+و+ړ+ن+د) (اسم، واحد، مو) کاواکه، بې فائدې خبره، ناشولته.

**ناغه** :- (ن+ا+غ+ه) (اسم، مفرد، مو) (۱) جرم، سزا، د عمل بدله، تاوان (۲) ښکلے (۳) هغه تخم چې زرغون نشي. په زمکه کښې دننه پاتې شي. (۴) د سترګو سرهٔ او نري رګونه.

**ناغېړن** :- (ن+ا+غ+ې+ړ+ن) (صف، مذ) ناراسته، سست، لټ.

**ناغېړي** :- (ن+ا+غ+ې+ړ+ي) (اسم، واحد، مو) له کاره سترګې پټونه، ناراستي، لټوالے.

**ناف** :- (ن+ا+ف) (اسم، مفرد، مذ) د خېټې غوټۍ، نوم، منځ، مرکز.

**نافذ** :- (ن+ا+ف+ذ) (صف) جاري کېدونکے، صادرېدونکے (حکم).

**نافرمان** :- (ن+ا+ف+ر+م+ا+ن) (صف) نامنونکے، له حکم یا خبرې نه انکار کونکے، باغي، سرکش.

**نافع** :- (ن+ا+ف+ع) (صف، مذ) نفع ورکونکے، ګټه ور، فائده مند.

**نافه** :- (نا+ف) (اسم، مفرد، مو) د مشکو تیلۍ، هغه خوشبویه وینه چې د یو قسم هوسۍ د نامه سره جختې تېلۍ سره جمع شوې وي.

**نافهم** :- (ن+ا+ف+ه+م) (صف مذ) ناپوهه، کم عقل، ساده، نادان، بې علمه، جاهل، جټ.

**ناقابل** :- (ن+ا+ق+ا+ب+ل) (صف مذ) د قابل ضد، نالایق، جاهل، ناموزون، نامناسب، سمون نهٔ خوړونکے.

**ناقد** :- (ن+ا+ق+د) (صف، مذ، جم: ناقدان) کتونکے، ښهٔ خراب معلومونکے.

**ناقرار** :- (ن+ا+ق+ر+ا+ر) (صف، مذ) قرار نهٔ لرونکے، ارام نهٔ لرونکے، بې قرار، ناقلاره.

**ناقراري** :- (ن+ا+ق+ر+ا+ر+ي) (اسم، مفرد، مو) قرار نهٔ لرنه، بې ارامي، ناقلاري.

**ناقص** :- (ن+ا+ق+ص) (صف، مذ) نیمګړے، نامکمل، نقص لرونکے عیب لرونکے، عیب دار، ناخالص جوړه.

**ناقل** :- (ن+ا+ق+ل) (صف، مذ) نقل کونکے، له یو ځاے نه بل ځاے ته وړونکے. روایت بیانونکے، راوي، مهاجر.

**ناقلار** :- (ن+ا+ق+ل+ا+ر) (صف، مذ) وګورئ: ناقرار.

**ناقلاري** :- (ن+ا+ق+ل+ا+ر+ي) (صف، مو) ارام نهٔ لرنه، بې ارامه.

**ناقوس** :- (ن+ا+ق+و+س) (اسم، مفرد، مذ) هغه ګوګو یا بیګل چې هندوان ئې د خپل عبادت په وخت غږوي.

**ناقه** :- (ن+ا+قَ) (اسم، مفرد، مو) د اوښ مونث، اوښه.

**ناک** :- (ن+ا+ک) (اسم، مفرد، مذ) د ناشپاتي د قسم یوه اونه او د هغې مېوه.

**ناک** :- (ن+ا+ک) لاحقه، هغه لاحقه چې د اسم سره په لګېدو صفتي معنیٰ پېدا کوي. لکه دردناک، غم ناک، خوف ناک.

**ناکاره** :- (ن+ا+ک+ا+ر) (صف، مو) وران، خراب، بدکار، کار نهٔ کونکے.

**ناکام** :- (ن+ا+ک+ا+م) (صف، مذ) ناکامیاب، نامراد، خامخا نهٔ کېدونکے کار. خواري، سخت محنت.

که ګور ګران د مړي ناکام دے (متل)

**ناکامي** :- (ن+ا+ک+ا+م+ي) (مفرد، مو) مجبوري، لاچاري.

**ناکامېدل** :- (ن+ا+ک+ا+م+ي+د+ل) مقصد نهٔ تر لاسه کېدل. پاتې راتلل، بې وسه کېدل.

**ناکرده** :- (ن+ا+ک+ر+د) (اسم، مفرد، مؤنث) هغه چې په عمل کښې نهٔ وي راغلے. ناکړے ظلم، زیاتے.

**ناکړده** :- (ن+ا+ک+ړ+د) (اسم، مفرد، مو، جمع: ناکړدې) زیاتے، ظلم.

**ناکردې** :- (ن+ا+ک+ر+دې) (اس، ج، مو) („د ناکرده،، جمع ده خو د واحد په شکل کښې ئې استعمال نشته) د ظلم زیاتي کارونه، ظلم زور.

**ناکس** :- (ن+ا+ک+س) (صف، مذ) (۱) کمینه، رذیل، لوچه. (۲) نادار، بې کس، عاجز.

**ناکلال** :- (ن+ا+ک+ل+ا+ل) نامناسبه، ناموزون، بې تهذیبه.

**ناکوبۍ** :- (ن+ا+ک+و+ب+ۍ) (اس، مو) ظلم، زیاتے، ناسزا.

**ناکوړا** :- (ن+ا+ک+و+ړ+ا) (اسم، مفرد، مذ) د جامو وینځلو کوتک، تپنړے، ځوباړے.

**ناکوړه** :- (نا+کو+ړَ) (پ تر، صف) بد قواره، بد شکله، بدرنګه، بې ډوله.

**ـــــ کوړه کول** :- بدرنګه کول، بد شکله کول، بدقواره کول.

**ناکوکه** :- (نا+کو+کَ) (پ تر، صف) (۱) هغه چې ناجوړه نهٔ وي. خو طبیعت ئې خراب وي. (۲) بې سُره ساز، هغه ساز چې لا په سُر کښې نهٔ وي راغلے.

**ـــــ کېدل** :- (۱) د ساز بې سُره کېدل. (۲) د طبیعت خرابېدل.

**ناکه** :- (نا+ک) (هـ، اس، مو، جـــــ کې) (۱) د سړک، نهر لارې وغېره سر. (۲) د نهر وغېره نه / څخه د ولې د را جدا کېدلو ځاے.

**ـــــ بندي** :- (ب+ن+دي) (هپ، تر، اس، مو) لاره بندونه، لاره ګودره، چاته بندونه یا نیونه.

**ـــــ بندي کول** :- چاته لار نیول. لارې ګودرې چاته بندول.

**ناګ** :- (نا+ګ) (هـ، اس، مذ، جـــــ ونه) مار، تورمار.

**ناګارتوب** :- (ن+ا+ګ+ا+ر+ت+و+ب) (اسم مفرد، مذ) ځان ناجانه کونه، تجاهل.

**ناګاره** :- (نا+ګا+ر) (پ تر، اس، مذ، مو) ځان ناجانه کوونکے. تجاهل، عارفانه کونکے، سره د پوهې ځان بې خبره ښکاره کوونکے.

**ځان ـــــ کول** :- ځان ناجانه کول. تجاهل عارفانه کول، سره د پوهې ځان ناخبره ښکاره کول.

**ناګاه** :- (نا+ګا+(ه)) (ف، اس، ظر) ناڅاپه، نابوبره.

**ناګمانه** :- (ن+ا+ګ+م+ا+ن) ناګاه، په بې خبرې کښې، ناڅاپه بې خبره.

**ناګڼلے** :- (ن+ا+ګ+ڼ+ل+ے) (صف، مذ) بې قدره، سپک، بې قیمته، ناخوښه.

**ناګوار** :- (ن+ا+ګ+و+ا+ر) (صف مذ) ناخوښ، له طبعې چپ، طبیعت خلاف، مکروه.

**ناګه** :- (ن+ا+ګ) (اسم، مفرد، مو) وچه ګیا، د یخنۍ په موسم کښې د

ښاروو وچه خوراکه.

**ناګهانه** :- (ن+ا+ګ+هـ+ا+ن) ناڅاپه ، ناګاه ، په بې خیالۍ کښې.

**نال** :- (ن+ا+ل)(اسم ، مفرد ، مذ) کوُنه ، بوټي ښخونه ، کرلے شوے ، ښخ کړے شوے.

**نال** :- (ن+ا+ل)(صف) زخمي ، ژوبل ، خوږ.

**نال** :- (ن+ا+ل)(اسم ،مفرد ،مذ) د جوارۍ هغه پېسې چې د پړ مالک له جوارګرو وصولوي.

**نال** :- (ن+ا+ل)(اسم ، مفرد ، مذ) د اسونو په نوکو او په ښپلو وغېره لګېدونکي د اوسپنې حلقه یا کړۍ.

ـــــ **اخېستل** :- د جوارګرو نه کمېشن وصولول.

ـــــ **کول** :- بوټي لګول ، وړوکے بوټي کرل.

ـــــ **کېدل** :- د بوټي په زمکه کښې لګول کېدل.د بوټي لګول کېدل.

ـــــ **کېدل** :- سورے کېدل ، زخمي کېدل ، ژوبلېدل.

هم په څو رنګه ناله هم په تن نال شوم

ببلتانه رابانديې د کړکار دے (خوشحال)

**نالان** :- (نا+لا+ن)(ف ، اس ، فا) ناله کوونکے ، ژړا / جړا کوونکے ، فریاد کوونکے ،فریادي ، شکایت کوونکے.

**نالایق** :- (ن+ا+لا+ئ+ق)(عف ،تر صف ، مذ ، جـــه) هغه چې لیاقت نۀ لري.لیاقت نۀ لرونکے ، ناقابله.

**نالت** :- (نا+ل+ت)(اس ، مو ، جـــــونه)(۱) د لعنت بدل شکل دے . (۲) مجازاً سؤر ، بد ځناور هم وائي .که په کوهي کښې سپے یا نالت یا نور دا هسې لېوۀ پرې ووزي. (خبرالبیان)

ـــــ **دي وي، په تا** :- په تا دې لعنت وي.د کوم بد کار په کولو وئیلے شي.

**نالتي** :- (نا+ل+تي) د ,, لعنتي ،، بدل شکل دے .هغه چې لعنت پرې شوے وي.د لعنت وړ.

**نالش** :- (نا+ل+ش)(ف ، اس ، مذ ، جـــــونه) ژړا / جړا ، فریاد ، زاري ، واوېلا.د حق او انصاف غوښتنه.د زور زیاتي شکایت.

ـــــ **کول، په چا** :- دعویٰ کول .په عدالت کښې د برخلاف درخواست ورکول.

**نالوستے** :- (ن+ا+ل+و+س+ت+ے)(پ تر ،صف ،اس ، مذ ، جـــتي) هغه سړے چې څۀ ئې لوستلي نۀ وي ان پړه ، بې تعلیمه.

دانشمند د معما په علم پوهدي

د ابجد په حساب څۀ خبر نالوستے (خوشحال)

**نالول** :- (ن+ا+ل+و+ل) کرل ، بوټي ښخول ، د اس یا بل ځناور په نوکو نالونه ټک وهل.

**ناله** :- (نا+ل)(ف ، اس ، مذ) ژړا / جړا ، فریاد ، چغه ، په چغه واوېلا.شور ، زوږ ، چغې سورې.

**ناله** :- (نا+ل)(هـ ، اس ، مذ ، جـــــلي) قدرتي والۀ ،غرئیزه والۀ ،ندۍ.

**نالیچه** :- (نا+لي+چ)(اس،مو،جـــچې) غالیچه ، قالین چه.

**نالیز** :- (نا+لي+ز)(پ تر،صف ،مذ ،مو ـــــه) نالتي (شپېلۍ لرونکے).

**دوه ـــــ ټوپک** :- (د+و ـــتو+پ+ک)(په تر ،اس ،مذ ،جـــــونه) هغه ټوپک چې دوه شپېلۍ لري.

**نالین** :- (ن+ا+ل+ي+ن)(صف ،مذ) هغه پېزار چې نالونه پرې لګولي شوي وي

**نالینه** :- (نا+لي+ن)(پ تر ، صف) هغه پښه یا بل پېزار چې نعلونه پرې وهلي شوي وي.

**نالۍ** :- (نا+ل+ی)(هـ ، اس ، مو)(۱) په لارو کوڅو کښې د اوبو د وتلو لار ، بد رود (۲) شپېلۍ ، د اوسپنې وغېره اوږده ډنډه چې په مېنځ کښې خالي وي. لکه : د ټوپک نالۍ.

**نالۍ** :- (نا+ل+ی)(اس ، مو ــــګانې)(۱) برستن (۲) تولاڅي،توشک.

**نام** :- (نا+م)(ف ، اس)(۱) نوم ، اسم ، د څۀ څیز یا کوم شي ، بنیادم ، ځناور ، ځاے پېژندلو دپاره کارېدونکي نومونه (۲) شهرت،مشهورتیا (۳) شرم ، ننګ ، عزت.

ـــــ **آور** :- (ـــــ آ+و+ر)(ف تر ،صف ، مذ ،اس ، جــان) نومور ، نومیالے ، مشهور ، د ښۀ نوم شهرت لرونکے.

ـــــ **آوري** :- (ـــــ آ+و+ري)(ف تر ، اس ، مو) نوموړتیا ، نومیالے توب ، مشهورتیا ، د ښۀ نوم شهرت لرنه.

ـــــ **برده** :- (ـــــ ب+ر+د)(ف تر ،صف) هغه چې وړاندې نوم ئې واخست شۀ، هغه چې وړاندې ئې ذکر وشۀ.

ـــــ **دار** :- (ـــــ دا+ر)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ــــــه) نوم لرونکے ، نومور ، نومیالے ، مشهور.

ډېر نامداران په شان شوکت ظاهر زمونږ په یاد شو

بیا ئې نابود شه نام نشان د ببلتانۀ له تاخته (حافظ)

ـــــ **نشان** :- (ـــــ ن+خا / شا+ن).

ـــــ **نښان** :- (پ تر ، اس ، مذ) نوم او ښان ، نخښه پته.

**نامت** :- (ن+ا+م+ت)(مفرد ، مذ)(۱) اراده ، عزم ، قصد ، نیت .(۲) ببخ وتلے ، تباه او برباد.

**نامتناسب** :- (ن+ا+م+ت+ن+ا+س+ب)(صف ، مذ ، مفرد) بې تناسبه ، تناسب نۀ لرونکے ، نسبت نۀ لرونکے.

**نامتو** :- (ن+ا+م+ت+و)(صف ، مذ ، اسم) په ښۀ والي مشهور ، نامدار ، نامور ، نوموړے ، تورزن ، تکړه.

**نامحدود** :- (ن+ا+م+ح+د+و+د)(صف،مذ) بې اندازې ، بې حده.

**نامحرم** :- (ن+ا+م+ح+ر+م)(صف ،مذ) پردے (سړے) ، هغه (سړے) چې زنانه له ترې پرده کول واجب وي.

**نامحصور** :- (ن+ا+م+ح+ص+و+ر)(صف ،مذ) د محصور ضد ، ازاد ، چې ګېر کړے شوے نۀ وي.

**نام خدا** :- (ن+ا+م+خ+د+ا) خداے دې له بدو سترګو وساتي.

**نامدار** :- (ن+ا+م+د+ا+ر)(صف ،مذ) نوموړے ، نامور ، نامتو ، په ښۀ والي مشهور.

**نامراد** :- (ن+ا+م+ر+ا+د)(صف ،اسم،مذ) ناکام ، مراد نۀ حاصلونکے ، ناکام ، بې مراد ، بد نصیب.

ـــــ **مراده** :- (ـــــ مُ/مْ+را+د)(ف پ تر،صف ،مذ،مو) هغه چې مراد ئې نۀ حاصلېږي.ناکامیابه ، محرومه ، بې نصیبه.

ـــــ **مراده کېدل** :-

ـــــ **مراده پاتې کېدل** :- ناکامیابه پاتې کېدل.مقصود نۀ موندل.

ـــــ **مراده تلل** :- ناکامیابه تلل ، د مقصود د حاصلولو نه بغېر ستنېدل یا مړ کېدل.

ـــــ **مرادي** :- (ـــــ مُ/م+را+دي)(ف پ ،تر،اس،مو) ناکامیابي،دمقصود نۀ حاصلېدنه ،بدبختي ، محرومي.

**نامربوط** :- (ن+ا+م+ر+ب+و+ط)(صف ، مذ ،مفرد) ګډ وډ ، بې ربطه ، ناتړلے.

**نامرتب** :- (ن+ا+م+ر+تُ+تَ+بْ)(عف تر،صف ،مذ ،مو ــه) هغه چې مرتب نۀ وي.بې ترتیبه ، ګډ وډ.

**نامړد** :- (ن+ا+م+ړ+د) ,, د نامرد ،، پښتو شکل دے.

**نامردي** :-

**نامردي** :- (پ تر ، اس ، مو)(۱) نهٔ سړے والے ، د نارينتوب قوت نهٔ لرنه ـ هيجړا توب (۲) بې غېرتي ، بې همتي ـ

**نامردتيا** :- (ن + ا + م + ت + يا)(و ـــــ نامردي) ـ

**ـــــ مرغوب** :- (ن+ا+م+ر+غو+ب)(عف تر ،صف ، مذ ،مو ـــ ه) هغه چې رغبت ورته نهٔ کېږي ـ نا خوښه ، نهٔ خوښېدونکے ـ

**نامزه** :- (نا + م + ز + د)(ف تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) په نوم کړې ، منسوب ، هغه جينۍ چې کوژدن / کوئيدن ئې شوې وي ـ

**ـــــ مساعد** :- (ـــ م + سا+ع + د)(عف ، تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) ناموافق ، چې موافقت نهٔ لري ـ غېر موافق ـ

**ـــــ مسعود** :- (ـــ م+ س + عو + د)(عف تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) هغه چې مسعود يعني مبارک نهٔ وي، سپېرهٔ ـ

**ـــــ مسلم** :- (ـــ م + س + ل + م)(عف ،تر ،صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې مسلم نهٔ وي ، غېر مسلم ، غېر مسلمان ، کافر ، مشرک ـ

**ـــــ مسموع** :- (ـــ م +س+مو+ع)(عف،تر ،صف،مذ ، مو ـــ ه) هغه چې اورېدے نشي ـ ناقبوله ـ چې غوږ ورته نهٔ کښېښودے کېږي ـ

**ـــــ مشروع** :- (ـــ م + ش + رو + ع)(عف ،تر ، صف ،مذ ، مو ـــ ه) هغه چې د شرعې مطابق نهٔ وي ـ د شرعې خلاف ، غېر شرعي ، غېرقانوني ـ

**ـــــ مطبوع** :- (ـــ م + ط + بو + ع)(عف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) (۱) هغه چې طبعې ته نهٔ پرېوزي، خلاف طبع، ناګوار، ناخوښ ـ (۲) هغه چې طبع شوے نهٔ وي ـ ناچاپه ـ هغه چې لاچاپ شوے نهٔ وي ـ

**ـــــ مطلوب** :- (ـــ م + ط + لو + بُ/بَ)(عف تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) هغه چې طلب ئې نهٔ وي ـ ناغوښتلے چې ضرورت ئې نهٔ وي ـ

**ـــــ معتبر** :- (ـــ م + ع + ت + ب + ر)(عف تر صف،مذ ،مو ـــ ه) غېر معتبر ، هغه چې اعتباري نهٔ وي ـ

**ـــــ معدود** :- (ـــ م + ع + دو + د)(عف تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) هغه چې شمېرلے کېدے نشي ـ د شمېر نه بهر ، مجازاً ډېر زيات ـ

څان له خُبثه پاکيزه کړه

لـکه بحر نـــا معدود (رحمان بابا)

**ـــــ معروف** :- (ـــ م + ع + رو + ف)(عف تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) غېر موصوف ، غېر مشهور ، هغه چې څوک ئې نهٔ پېژني ـ

**ـــــ معقول** :- (ـــ م + ع + قو + ل)(عف تر ، صف ،مذ ،مو ـــ ه)(۱) هغه چې د عقل مطابق نهٔ وي ـ د بېوقوفۍ خبره ـ

**ـــــ معلوم** :- (ـــ م + ع + لو + م)(عف تر ،صف ،مذ ، مو ـــ ه) هغه چې معلوم نهٔ وي ـ غېر معلوم ـ چې چاته ئې پته نهٔ وي ، ګمنام ـ

**ـــــ مقبول** :- (ـــ م + ق + بو + ل)(عف ،تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه)(۱) هغه چې مقبول نهٔ وي ـ هغه چې نهٔ قبلېږي ـ (۲) ناخوښه ـ

**ـــــ مکمل** :- (ـــ م + ک + م + ل)(عف ،تر ،صف ، مذ ، مو ـــ) هغه چې مکمل نهٔ وي ـ نيمګړے ، ناپوره ، ناقص ـ

**ـــــ ممکن** :- (ـــ م + م + ک + ن)(عف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې ممکن نهٔ وي ـ غېر ممکن ـ ناشونے ، نهٔ کېدونکے ـ

**ـــــ ممکن** :- (ـــ م + م + ک + ني)(عف تر ،اس ،مو) غېـــر ممکنـــي، ناشونتوب ، ناشونوالے ـ

**ـــــ مناسب** :- (ـــ م + نا + س + ب)(عف تر ، صف ،مذ ، مو ـــ ه) هغه چې مناسب نهٔ وي ـ غېرمناسب، غېرموزون ـ

**نامنظور** :- (نا +م + ن + ظو + ر)(عف ،تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) هغه چې منظور شوے نهٔ وي ـ ناقبوله ـ

د ببلتانهٔ په کچهرۍ کښې

زهٔ نامظور درخواست په لاس ولاړه يمه (ټپه)

**ـــــ کول** :- د درخواست وغېره د منلو نه / څخه انکار کول ـ

**ـــــ کېدل** :- درخواست وغېره نهٔ منلے کېدل ـ لکه : د فلاني اپيل نامنظور شو

**نامنکشف** :- (نا+م + ن + ک + ش + ف)(عف ، تر ، صف ،مذ ،مو ـــ ه) هغه چې منکشف شوے نهٔ وي ـ يعني ښکاره يا څرګند شوے نهٔ وي پټ ، ناڅرګند ـ

**ـــــ مانوس** :- (ـــ ما + نو + س)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې مانوس نهٔ وي ـ نابلده ـ هغه چې عادت شوے نهٔ وي ـ اوپره ـ لکه : ناموسه کلمات ـ

**ناموافق** :- (نا +م +وا+ف+ق)(عف ،تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) هغه چې څهٔ سره موافقت نهٔ لري ـ غېر موافق ، سمون نهٔ لرونکے ، مخالف ـ

**ناموافقت** :- (نا +م + وا + ف + ق + ت)(عف،تر،اس،مذ) موافقت نهٔ لرنه ، يو شان والے نهٔ لرنه ، مخالفت ـ

**نامور** :- (نا +م + و + ر)(ف تر ،صف ،اس ،مذ ، ج ـــ ان) نوم واله ، شهرت لرونکے ، عزت واله ، مشهور ، نامتو ، نومور ـ

**نامورہ** :- (نا +م + و + ر)(ف پ تر ،صف ،مو ،ج ـــ رې) د ,,نامور ،، تانيث دے ـ

**ناموري** :- (نا +م + و + ري)(ف تر ،اس،مو) نوم لرنه ، شهرت لرنه ، شهرت،مشهورتيا ،عزت لرنه،نوميالتوب ـ

**ناموزون** :- (نا + مو + زو + ن)(عف ،تر ،صف،مذ ،مو ـــ ه) هغه چې موزون نهٔ وي ، بې وزنه ، هغه چې وزن ئې درست نهٔ وي ـ بې تولې ، بې مناسبه ، چې جوړښت يا سمون نهٔ خوري لکه : ناموزون شعر ، يا ناموزونه خبره ـ

**ناموزه** :- (نا+مو+ ز)(پ تر ،صف)(۱) بې وجهې ،بې سببه (۲) بې اعتباره ـ

**ناموزه** :- (نا +مو + ز)(صف) کمزورے ، کم طاقته ، ضعيف ـ

**ـــــ کول** :- کمزورے کول ، بې طاقته کول ـ

**ـــــ کېدل** :- کمزورے کېدل ، کم طاقته کېدل ـ

**ناموزتيا** :-(نا+مو+ ز+ت+ يا)(پ تر ،اس، مو) کمزوري ، ناتواني ،کم طاقتي ـ

**ناموزي** :- (نا+مو+زي)(اس،مو) کمزوري،ناتوالي،کم طاقتي ـ

**ناموس** :- (نا + مو + س)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / نو/ ميس) عزت ، ابرو ، ننګ غېرت ، پاک لمنې ـ

**ـــــ اکبر** :- (ـــ (س) + ا + ک + ب + ر)(و ـــ لوے ناموس) ـ

**ـــــ دار** :- (ـــ دا + ر)(ف تر ،صف،اس ،مذ ، ج ـــ ان) ناموس لرونکے ، غېرت لرونکے ، غېرتي ، ننګيالے ـ

**ـــــ داره** :- (ـــ دا + ر)(ف تر ،مو ،ج ـــ رې) د ,, نـــاموس دار ،، تانيث دے ـ

**ـــــ ګټل** :- عزت ګټل،ابرو په ځاے کول ، د عزت بدل اخستل ـ

**د ـــــ وتل** :- د ننګ غېرت نه څخه کار نهٔ اخيستل ، بې غېرته کېدل ـ

**ناموسي** :- (نا +مو + سي)(ف تر ،اس،مو) ناموسي سره تعلق لرونکے ، ناموس ته منسوب ، لکه : ناموسي کارنامه ـ

**نامهربان** :- (نا + هـ + ر+ با + ن)(ف تر ،صف ،مذ ، مو ـــ ه) هغه چې مهربانه نهٔ وي ـ بې مهره ، بې مروته ، بې رحمه ، بد خواه ، ناترسه ـ

**نامهربانه** :- (نا + هـ + ر+ با + ن)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې مهربان نهٔ وي ، مهرباني نهٔ کوونکے ـ

**نامهرباني** :- (نا + هـ + ر+ با + ني)(ف تر ،اس ، مو) د مهربانۍ نيشتيا ، بدسلوک ، سخت سلوک يا رويه ، بې رحمي ، ناترسي ـ

**نامه** :- (نا + م)(ف ،اس،مو، ج ــــ مې) خط ، چيټي.

**ــــبر** :- (ــــ ب + ر)(ف تر،اس ،مذ ، ج ــــ ان)(۱) خط وروکونکې ، خط رسوونکې (۲) ډاکي ، چيټيي رسان.

**ــــبري** :- (ــــ ب + ري)(ف تر،اس ،مو) خط وړنه ، خط رسونه ، ډاکي توب ،چيټيي رساني.

**ــــاعمال** :- (ــــ (ئې) ا + ع + ما + ل)(عف ،تر،اس)(۱) د عملونو کاغذ ، اعمال نامه ، هغه کاغذ چې فرښتې پرې د هر وګړي هر قسم عملونه ليکي او د قيامت په ورځ به ورته په لاس کښې ورکولې شي . (۲) مجازاً د چا د کوم بد کار ثبوت.

**نامه** :- (نا + م)(اس،مو،ج ــــ مې) د ,,نوم ،، بدل شکل دی . (۱) نوم ، اسم ، لکه ستا څۀ نامه ده ؟ (۲) د بني ادم د ګېډې په مېنځ کښې سوری شان. (۳) شهرت ، مشهورتيا .

**ــــنامه** :- (ــــ نا + م )(لاحقه) د فارسۍ لاحقه ده. اسمونو سره وروستو لګولې شي. لکه : اعمال نامه.

**په ــــ** :- (پ ــــ)(۱) په نوم ،چا سره نسبت ورکونه .(۲) په خاطر ، دپاره لکه : د خدای په نامه !

**د خدائې په ــــ** :- (۱) د خدای په خاطر ،د خدای د رضا دپاره .(۲) مفت ، وړيا .

**لاس په ــــ** :- (لا+س+ پ ــــ)(پ تر، تف) لاسونه د نوم په څای تړلي . لاس په سينه ، په ادب سره ودرېدنه. په ادب سره د حکم انتظار کونه.

**لاس په ــــ ودرېدل / درېدل ،چا ته** :- د چا په خدمت کښې په ډېر ادب سره د حکم منلو ته تيار ودرېدل. ډېره زياته تابعداري کول.

**لاس په ــــ** :- (لا+ س + پ ــــ)(پ تر،تف) لاس د نوم دپاره تړلې شوې . چې د ډېر عزت او احترام ښکاره کولو نخښه ده . (په نمانځۀ کښې هم په دغه مقصد لاسونه د نوم دپاسه تړلې شي ).

**ــــليکونکې** :- (ــــ لي + کو + ن + کې)(و ــــ نامه نګار ).

**ــــنګار** :- (ــــ ن + ګا + ر )(ف تر،مذ ، ج ــــ ان) هغه چې خط يا خطونه ليکي. خصوصاً هغه سړی يا ښځه څوک چې اخبارونو ته خطونه ليکي او په کښې خبرونه وغېره استوي.

**ــــنګاره** :- (ــــ ن + ګا + ر)(ف پ تر،اس ،مو،ج ــــ رې) د ,, نامه نګار ،، تانيث دی.

**ــــنګاري** :- (ــــ ن + ګا + ري)(ف تر،اس،مو)(۱) خطونه ليکنه ، د خطونو د ليکلو فن .(۲) اخبارونو ته د خبرونو وغېره په حقله خطونه ليکنه.

**ــــوړې** :- (ــــ و + ړې)(و ــــ نومړې ).

**نامي** :- (نا + مي)(ف،صف ) د نوم خاوند ،نومور ،مشهور .

**نامي** :- (نا + مي)(پ تر،صف ) نومور ، مشهور ، نامتو .

هــر چې پــلار نيــکـۀ د کــړي هغه کار کړه

د نـــاموس و ننګ په کار کښې نامي څوان شه (خوشحال)

**ــــګرامي** :- (ــــ ګ + را + مي)(ف تر،صف) د نوم او عزت خاوند ، نومور او عزتمند ، ډېر مشهور.

**نامي** :- (نا + مي)(ع،صف )(۱) نشوونما موندونکې.(۲) پرورش موندونکې.

**نامېر** :- (نا + مې + ر )(صف،مذ،مو ــــ ه) ناخوښه ،ناپسنديده .

**نامېري** :- (نا+مې+ري )(پ تر،اس،مو ) ناخوښوالې،ناپسنديدګي .

**نامېرلې** :- (نا + مې + ر + لې )(پ تر،اس،مف ،مذ ،ج ــــ لي) نومېرلې ، ټاکلې شوې ، متعين شوې.

**نامېرلې** :- (نا + مې + ر + لې )(پ تر،اس،مف ،ج ــــ لي) هغه چې مېرلې شوې نۀ وي. ناچوڼ کړې ، غېر منتخب.

**نامېړې** :- (نا + مې + ړ ې )(پ تر،صف) ناخوښه ، ناپسنده.

**نامېړې** :- (نا + مې + ړ + ې)(پ تر،اس،مو )د ,, نامېړې ،، تانيث دې.

**نامېړې** :- (نا + مې + ړې )(پ تر،صف ،اس ،ج ــــ ړي) نوميالې ، نومور ، مشهور ، اوځار .

**نامينده** :- (نا + مي / مې+ن + د )(پ تر،صف ) د ,, نا امېده ،، بدل شکل دی . نااميده ، بې طمعې ، مايوسه.

**ــــ کول** :- نااميده کول ،بې طمعې کول ، مايوسه کول.

**ــــ کېدل** :- نا امېدۀ کېدل ،بې طمعې کېدل ،طمع قطعې کېدل ، مايوسه کېدل.

**نامينده ګي** :- (نا + مي / مې + ن + د + ګي )(پ تر ،اس ،مو) نااميده ګي ، نا اميده کېدنه ، مايوسي.

**نامينده ي** :- (نا + مي / مې + ن + د ي)(و ــــ ناميندګي ).

**ناميه** :- (نا + مي + يَ)(ع ،اس،مو ) وده ورکوؤنکې قوت ،د نمو کولو وقت کوم چې خدای پاک په حېوناتو او نباتاتو کښې پېدا کړې دی. کوم چې دا مخلوق لويوي ، لوړوي او غټوي.

**نان** :- (ن + ا + ن )(اسم،مفرد ،مذ ) ،ډوډۍ،ټپکاله .

**ــــپز** :- (ــــ پ + ز )(ف تر،اس،مذ ،ج ــــ ان) په تنور کښې ډوډۍ پخوونکې ، نانوائي ، نانبائي.

**ــــپزي** :- (ــــ پ + زي )(ف تر،اس،مو ) په تنور ډوډۍ پخونه،نانوائي توب.

**نانا** :- (نا + نا )(اس ، مو ، ج ــــ ګانې) نيا ته د خطاب په وخت وئيلې شي . نيا .

**نانا** :- (نا + نا )(اس،مو ) نيا ته د مخاطب کولو لفظ.

**نانا** :- (نا + نا )(اس ، مو ) د ,,لغتاع ،، بدل شکل دی. څنګلي پودينه. چې اکثره د ولو په غاړه کېږي.

**نانا** :- (نا + نا ) د ,, نه نه ،، بدل شکل.

**ــــ کول** :- انکار کول ، د چا د سوال په جواب کښې د ,,نه ،، يعني د نفي جواب ورسول.

**نانبائي** :- (نـا + ن + ب + ا + ي )(صفت) ډوډۍ پخـونکې ، د ډوډۍ د تنـارۀ کار کونکې ، نان پز.

**نانبائيتوب** :- (نا + ن + ب + ا + توب )(اسم،واحد ،مذ ) د ډوډۍ پخولو کار . نان پزي ، د نانبائي کار .

**نان پز** :- (نا + ن + پ + ز )(اسم صفت) وګوري : نانبايي.

**نان پزي** :- (نا+ن+پ + زي)(اسم ،واحد ،مو ) وګوره : نانبائيتوب .

**نانځکه** :- (نـا + ن + ځ + کـه )(اسـم ،واحـد ،مو ) ګـوډۍ ،لولۍ ،ناوکۍ ، ښنځکه .

**نان‌دري** :- (نا + ن + د + ري)(اس،مو ) پېغور ، ملامته.

د عاشق بخره خواري زاري نان‌دري

د معشوقې څـۀ پـروا لـه مـروره (خوشحال)

**نان‌درۍ** :- (نا + ن + د + ر + ۍ )(اس،مو،ج )(۱) د خبرو يو بـل سره اړول . (۲) د ښځو يو بل له پېغور نه ورکونه تاويلي ما ويلي.

**نانده** :- (نا + ن + د + ه )(ف تر،صف )(۱) ډوډۍ ورکوونکې .(۲) خدای پاک.

**نانوپوله** :- (نا + ن + ډو + ل )(اس،مو،ج ــــ لې ) بې خونده او نا معقوله خبره.

**نان خورش** :- (نا + ن + خو / خُ + ر + ش )( ف،تر،اس،مذ ) انګولې ، لاوڼ.

هر چې ابلهان دي روغنۍ خوري د خباز

هــر چې دانايان نان خورش نۀ لري پياز (خوشحال)

**نانزکه** :- (نا + ن + ز + کَ) (و ـــــ نانځکه).

**نــان ستڼاپ** :- (نـا + ن + س + تہا + پ) (انـگ تر ،صـف) نـهٔ ودرېدونکے ـ هغـه گاډے یا بس وغېره چې د لارې په مېنځ کښې نـهٔ ودرېږي ـ نېغ خپـل مقام ته ځي ـ

**نانغت** :- (نا + ن + غ + ت) (صفت) نامنونکے ،نافرمان ،په خبره عمل نهٔ کونکے ، خبره نهٔ منل ـ

**نانغتا** :- (نا + ن + غ + تا) (صفت) وگورئ : نانغت ـ

**نانغتــان** :- (نـا + ن + غ + تـا + ن) (صـف ،مـذ ،مو ــــــ ه) خبـرې تـه غـوږ نـهٔ کښېښودونکے ،خبره نهٔ منونکے ـ

د نېک خواه خبره نغوږه پرې عمل کړه

نــانـغــتــانــو تــه تیار د ے نـــدامت (خوشحال)

**نـانفروش** :- (نـا + ن + ف + رو + ش) (ف تر ،اس ،مذ ،ج ـــان) ډوډۍ پخـونکے او خرڅوونکے ـ ډوډۍ واله ـ

**نان کباب** :- (نـا + ن + ک + بـا + ب) (ف ،تر ،اس) ډوډۍ (تنوري) او سیخکي کباب (پخوا د پېښور ښهر دا دواړه څیزونه ډېر مشهور وو) ـ

**نان کمشنډ** :- (نا + ن + ک + م + ش +ن+ ډ) (انگ ،تر ،صف) پـه فـوځ کښـې د افسرۍ یوه وړوکې درجه ـ

**نانگه** :- (نـا + ن + گ) (اس ،مـو ،ج ـــــــ گې) چکه دانـه ، یـو څیـز د ے چې ماشومانو او مریضانو له ترې غذا پخولے شي ـ انانگه ـ یو قسم مېوه ده ـ

**نانگه** :- (نـا + ن + گ) (اس ،مـو ،ج ـــــــ گې) یـو قسم غرئیـز بـوټے د ے ـ د ممانړې په شان ته وي ـ سرې دانې کوي چې ډېرې خوږې وي ـ

فلسه بادام ، گهرنے ارعنجا نانگه

ښـیـــروه جـنـــغــوزه کـــرفشا ر (دولت)

**نانگه** :- (نا + ن + گ) (اس ،مو) یو قسم مېوه ، تورې ببرې ـ

**نـان گزېټډ** :- (نـا + ن + گ + ز + ټ + ډ) (انگ ،تر ،صف) هغـه افسر چې نامـه ئې په سرکاري گزټ کښې نهٔ وي چاپ شوې ـ وړوکے سول افسر ـ

**نانگېړے** :- (نا + ن + گـ + ړے) (اس ،مذ) یـو قسم بـوټے د ے چې وړې وړې تورې دانې کوي ـ

**نان نفقه** :- (نا + ن + ن + ف + ق) (عـف تر ،اس ،مـو / ج ـــقې) ډوډۍ او نـور خرڅ ـ ډودۍ جامه ـ

**نان نفقـه ورکـول** :- ډوډۍ جامـه ورکـول ـ بـال بچ لـه ډوډۍ جامـه او نـور خرڅ ورکول ـ

**نــان و آتش** :- (نـا + ن + (نـو) + آ + ش) ډوډۍ پخلے ـ مجـازاً ډوډۍ مـاري ، مېلمه دوستي ـ

که هندي دي که سندي دي مخ ئې تور شــــه

نـــهٔ حیـــا نـــهٔ ئې وفـــا نـــهٔ نـــان و آتش (خوشحال)

**نــان نـویس** :- (نـا + ن + ن + وي + س) (فـپ تر ،صـف ،مذ ،مو ـــ ه) هغـه چې لیکلے شوے نهٔ وي ـ نالیکلے ـ

خوانندہ د نانویسو صحیفو د ے

داننـده د هر اسرار د ے رب زما (رحمان بابا)

**نانیدے** :- (نا + نی + د ے) (صف ،مذ) هغه چې جوتي شوے نهٔ وي ـ

**ناني** :- (نا + ني) (ف تر ،صف) ,, نان ،، سره تعلق لرونکے ـ مجازاً خود غرضه ، مطلبي ـ

ښه دغوښن وائي خوارسیتگار د چا په کار وي

کـم خـلـق حقاني دي ، زمانه اکثر ناني شوه (حافظ)

**ناني** :- (نا + ني) (ف تر ،صف) نان سره تعلق لرونکے ، ډوډۍ خور ـ لکـه : ناني یاران ـ

**نانیسا** :- (نا + ني + سا) (اس ،مذ) (۱) کرکـه کـوونکے ، نفرت کـوونکے ـ (۲) بزدله ، کم همته ـ

**نـانے** :- (نـا + نے) (اس ،مذ ،ج ـــــــ ئ) وړوکې چې د هر چا خـوښ وي ـ د خوښې ماشوم ته له میني وایهٔ شي ـ خود غرض ، مطلب اشنا ـ

**نــاو** :- (نـا + و) (اس ،مـذ) دره ،د دوه ؤ غرونـو پـه مېـنځ کښـې جـوره / ژوره زمکه ـ

**ناو** :- (ن + ا + و) (اسم ،مفرد ،مذ) نم ، لوندوالے ، زیم ـ

**ناواقف** :- (نا + وا + ق + فُ / فَ) (عف تر ،اس ،مذ ،مو ـــ ه) هغـه چې واقف نـهٔ وي ـ نا اشنا ،نابلده ـ ناپېژندگلو ،پېجندگلو ـ نا تجربه کار ،جاهل ـ

**ناواقفیت** :- (نا + وا + ق / ق + في + ي + ت) (عف ،تر ،اس ،مذ) واقف نهٔ ,,بودنه ،، ، نااشنائي ـ ناپېژندگلو/ ناپېجندگلو ـ نابلدتیا ناتجربه کاري ـ جهل ـ

**ناوتې** :- (نا + و + ت + ی) (اس ،مو) هغـه پـاک لمنـه ښـځه چې د خپـل داسې مسـافر خاونـد د ژونـد او راستنېدو پـه طـمع ناستـه عمـر تېـروي ـ چې د خاوند د مړ ژوندي په حقله ئې هېڅ خبر اتر نهٔ راځي ـ

**ناوخته** :- (نا+و+خ+ت) (پ تر ،اس ،ظر) (۱) د مقرره وخت نـه (ډېـر) ورسـتو (ف : به ډېر) (۲) د عام معمول نه وروستو ـ

**ـــــــــ راتلل** :- د مقرره وخت نـه وروسـتو راتلـل ـ لېټ راتلـل ـ لکـه : هغـه د شپې ډېر ناوخته راځي ـ

**ـــــــــ کول** :- د مقرره وخت یا د معمول د وخت نه وروستو کېدل ـ

**ـــــــــ کېدل** :- د مقرره وخت نه / څخه وروستو کېدل ـ

**ناور** :- (نا + و + ر) (اس ،مذ ،ج ـــــــ ونه) ډنډ ، ولاړې اوبهٔ ـ په دشت کښې د باران ولاړې اوبهٔ ـ

**نــاورین** :- (نـا + و + ري + ن) (اس ،مـذ ،ج ـــــــ ونـه) مـاتم ، غـم ، سـوگ ، مصیبت ـ

جهان ځاے د خوښۍ نهٔ د ے د ناورین د ے

چې طـوطـا لـه گلستانـه په چیغـار ځي (خوشحال)

**ناوړ** :- (نا + و + ړ) (پ تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) هغه چې وړ نهٔ وي ـ ناموزون ، نامناسبه ـ

**ـــــــ توب** :- (تو + ب) (پ تر ،اس ،مذ ،ج ـــــ ونه) نامناسبت ، غېر موزونیت ، جواز نهٔ لرنه ـ

**ـــــــ تیا** :- (ـــــــ ت + یا) (پ تر ،اس ،مو ،ج ـــــ گانې) (و ـــــ ناوړتوب) ـ

**ناوړه** :- (نا + و + ړَ) (پ تر ،صف ،مو ،ج ـــ ړې) د ,, ناوړ ،، تانیث د ے ـ

**ـــــ پېښه** :- (ـــــ پې + خ / ش) (پ ، تر ،اس ،ج ــــــ ښې) نامناسبه پېښـه ، ناموزونه واقعه ، نامناسبه حادثه ـ

**ناوړې** :- (نا + و + ړې) (اس ،مو ،ج) لاړې ،د خولې اوبهٔ (لعاب) ـ توکانې ـ

**ناوسه** :- (نا+و+س) (پ تر ،صف) بې وسه ،بې اختیاره ، مجبور ـ

**ناوسي** :- (نـا + و + سي) (پ تر ،اس ،مـو) بـې وسـي ، مجبـوري ، تنـگ لاسي ، ناچاري

**ناوک** :- (نا + و + ک) (ف ،اس ،مذ ، ج ـــــــ ونه) غشے ، تیر ـ

هر ناوک چې د قضا له شسته خېژي

زمانه د خوشحـــال زړهٔ ورته اماج کا (خوشحال)

**ـــــ انداز** :- (ـــــ ا + ن + دا + ز) (ف تر ،اس ،مذ ،ج ـــان) غشـي ویشـتونکے ، تیـر انداز ـ

**ـــــ مژگان** :- (ـــــ م + ژ + گا + ن) (ف تر ،اس ،مذ) د سترگو د بڼو غشـي ـ د معشوقې (د عشق) غشي ـ

**ناوکی** :- (نا + و + ک + ی) (اس ، مو) گوډۍ ، نانزکه ، لعبت ـ

**ناوکے** :- (نا + و + کے) (فپ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ کي) د ,, نــاوک ،، تصــغیر

دے۔وړوکے غشے۔

**ناوګۍ**:- (نا + و + ګ + ۍ) (اس،مع) د يو کلي او علاقې نوم دے۔د پښتو په مشهوره سندره کښې ئې ذکر راځي۔

راپرېږده نور جمال د ناوګۍ (د سندرې سر)۔

**ناول**:- (نا + و / ؤ + ل) (انګ، اس، مذ، ج ــــونه) د نـوې طـرز د قيصـې کتاب۔اوږده افسانه چې ګڼ او مختلف کردارونه لري۔

**ــــ نګار**:- (ــــن + ګا + ر) (انګ ف تر، اس، مذ، ج ــان) ناول ليکونکے، هغه ليکوال چې د ناول د طرز قيصې ليکي۔

**ناول ــــ**:- (نا + و + ل ــــ) (سابقه) د ,, ناولے ،، لنډ شکل دے۔چې د سابقې په طور استعمالېږي او د خيرن، ګنده، ناوينځلے معنیٰ ورکوي۔

**ــــ توب**:- (ـ تو + ب) (پ تر، اس، مذ) ګنده اوسېدنه، ناپاکي، خيرن توب۔

**ــــ تيا**:- (ــــــ ت + يا) (پ تر، اس، مو) (و ــ ناولتوب)۔

**ناولست**:- (نا + ؤ + ل + س + ت)۔

**ناولسټ**:- (نا + ؤ + ل + س + ټ) (انګ، اس، مذ، ج ــان) (و ــــ ناول نګار)۔

**ناولے**:- (نا + و + لے) (پ تر، صف، مذ، ج ــــلي) ناپاکه، خيرن، ګنده چې وينځلے شوے نۀ وي۔ناوينځلے۔

هر يو مخ کله لائق د ابرو يې دے
اوښکې نۀ درومي په مخ د هر ناولي (رحمان بابا)

**ناوه**:- (نا + و) (اس، مو، ج ــــوې) پرناله، ميزاب، لودانه، چرنره۔

بيزه دبارانه تښتيده دناوې لاندې ئې شپه شوه۔ (متل)۔

د بارانه تښتيدمه د ناوې لاندې مې شپه شوه۔ (متل)۔

د ناوې لاندې دې شپه شوله عظيمـــه
تښتيدلې پـــه دو دو لــــه بـــارانۀ (عبدالعظيم)

**ناوې**:- (نا + وې) (پ، اس، مو، ج ـــ ګانې / انې) نوې واده شوې ښځه، عروس

هغـــه نـــاوې چې پـــخپـــله ښائستـــــه نۀ وي
څوک به ئې څۀ کاندي ښائست د مور او نيا (رحمان بابا)

**ناويات**:- (نا + و + يا + ت) (صف، مذ، مو ـــــه) (۱) کم يابه، نۀ موندلے کېدونکے، نايابه۔

څلـــه بولې پروانه د ځان په سويو
ګنه نۀ وي همېشه ناوياته شمع (حسين)

(۲) ډېر خوږ، ډېر خوښ۔

**ناهوسا**:- (نا+هو+سا) (پ تر، صف) سترے، ستومانه، بې ارامه۔

**ناهوسائي**:- (نـا + هو+سا+ ئي) (پ، تر، اس، مو) (۱) سترېا، ستوماني (۲) ناقلارے، بې ارامي۔

**ناهل**:- (ع، اس، فا، مذ، مـو ـــه) نهـل، څښـکلو تـه وائي۔ناهـل تنده ماتوونکے (عام نۀ استعمالېږي)۔

ن ناهل به ئې مور و پلار شي
د حبيب حب بـــه بسيار شي (حافظ)

**ناهي**:-(نا + هي) (ع، اس، مذ) نهي کوونکے، منع کوونکے۔

**ناهيد**:- (نا هي + د) (اس، مع) (۱) مشهور روښانه ستورے، زهره۔(۲) د زنانۀ ؤ په نومونو کښې راځي۔

**ناهوار**:- (نا + هـ + وا + ر) (پ تر، صف، مذ، مو ـــه) د هوار ضد، لوړ ژور، هغه سطح وغېره چې هواره نۀ وي۔

**ناوېسا**:- (نـا + وې + سـا) (صف) بې اعتبـاره، بـې اعتمـاده، اعتبـار نـۀ کوونکے، اعتماد نۀ لرونکے۔

د رقيب علاج اســـان دے، بلا دا شوه
زۀ رحمان د خپله يـــاره نـــاويسا يـــم (رحمان بابا)

**ناوے غړک**:- (نا + وې + غ + ړ + ک) (اس، مذ) هغـه هـډوکے چې د شرط په طور بل له ورکولے شي۔ناوے کړت۔(ف: عروس کشک)۔

**ناهيه**:- (نا + هي + ي) (اس، مو، ج ـــــيے / نواهي) منع، منع شوے کار وغېره، ممنوع۔

**ناهيلي**:- (نا+هي+لي) (اس، مو) نا امېدي، مايوسي، نامېندي۔

**نائب**:- (نـا + ئـے + ب) (نـا + ي + ب) (ع + صف، مـذ، مـو ـــه) ماتحت، مددګار، اسسټنټ، قائم مقام۔

**ــــ تحصيلدار**:- (ـــت + ح + صي+ل +دا+ ر) (عـ پ تر، اس، مذ، ج ـــان) (۱) د محکمه مال يو عهده ده چې د تحصيلدار د لاندې وي۔ (۲) مجازاً لوے افسر۔

**ــــ الحکومت**:- (ـــ ب+ل ح+ کو+ م+ت) (ع تر، اس، مذ) وزير يا بل د ټولو نه عهدېدار۔چې د حکومت ټول کارچلوي۔وائسرائے۔

**نائټروجن**:- (ن +ا+ي+ټ+ر+و + ج + ن) (اسم، مفرد، مذ) د يـو بې رنګه، بې بويه او بې خونده ګېس نامه۔

**ــــ السلطنت**:- (ـ ب + س) + س + ل + ط + ن + ت) د حکومت نائب، ګورنر، د حکومت اختيار لرونکے۔

**نائره**:- (نا + ئے + ر) (ع، اس، مو، ج ــــرې) د اور لنبه، شعله۔

نـائـره د غـارې هسکه نګهبـــان کړم
مصائب د نېکو بدو په دا چار شوم (هجري)

**نائک**:- (نا + ئے + ک) (ه، اس، مذ، ج ــــان) (۱) مالک، خان، زميندار ان، د زمکې مالک ته وائي او نوکران خپل افسر يا سردار تـه۔نکې (۲) په فوځ کښې يوه عهده، د ټولونه وړوکے افسر (۳) د موسيقۍ د ماهر لويه درجه۔

**نائم**:- (نا + ئے + م) (ع، اس، فا، مذ، مو ـــه) اوده، په خوب اوده۔خفته۔

**نائل**:- (نـا+ئ / ئے+ل) (ع، اس، فا، مذ، مو ـــه) رسېدونکے، موندونکے، حاصلوونکے۔

**ــــ کېدل، په کوم څيز**:- په حاصلولو کښې کامیابه کېدل۔حاصلول، ور رسېدل۔

**نائے**:- (نا + ئے) (ف، اس، مو) نے، شپېلۍ، بانسري۔

**نايا**:- (نا + يا) (صف) دننه، درون۔

**ــــ کول**:- دننه کول۔

**ناياب**:- (نا + يا + ب / بَ) (ف تر، اس، مذ، مو ـــه) (۱) نۀ پېدا کېدونکے، ناوياته، لاس ته نۀ راتلونکے۔ (۲) مجازاً: ډېر کم ياب (۳) قيمتي، ډېر قيمت واله، بېش بها۔

**ــــ کېدل**:- نۀ پېدا کېدل، ورکېدل، معدوم کېدل۔

په کوم لوري پسې ځم چېرته ئې غواړم
د کېميا غوندې ناياب شول دانايان (خوشحال)

**نايابي**:- (نا + يا + بي) (ف تر، اس، مو) (۱) نۀ پېدا کېدنه، لاس ته نۀ راتلنه۔ (۲) مجازاً: کم يابي۔(۳) مجازاً: ډېر قيمت لرنه۔

**نانباي**:- (نـا + ن + ب + ا + ي) (صف) ډوډۍ پخـونکے، د ډوډۍ د تنـارۀ کـار کونکے، نان پز۔

**نانبائيتوب**:- (نا + ن + ب + ا + توب) (اسم، واحد، مذ) د ډوډۍ پخولـو کـار نـان پزي، د نانبايي کار۔

**نان پز**:- (نا + ن + پ + ز) (اسم، صفت) وګورئ: نانبائي۔

**نان پزي**:- (نا + ن + پ + زي) (اسم، واحد، مو) وګورئ: نانبائيتوب۔

**نب**:- (ن + ب) (انګ، اس، مذ، ج ـــونه) د ليکلو د هولډر سوکه، سوکه۔

**نبات**:- (ن + با + ت) (ف، اس، ج) خواږۀ، مصري، قند۔

**نبات** :- (ن + با + ت) (ع اس، مذ، ج ــونه / ات) سبزه، شین شینکے، وابښهٔ، بوټي وغیره.

**نباتات** :- (ن+با+تا + ت) (ع ،اس،ج) (د نبات جمع ده) وابښهٔ، بوټي ،شین شینکے، روسیدکي، هر قسم شنهٔ بوټي وابښهٔ ونې وغیره چې د زمکې نه / څخه پیدا کېږي.

**نباتاتو** :- (ن + با + تا + تو) د ,, نباتات ،، بدل شکل دے .چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.

**د ـــ باغ** :- (د ـــ با + غ) (پ تر ،اس،مذ ،ج ـــــ ونه) هغه باغ چې په کښې قسم قسم بوټي د مطالعې مشاهدې دپاره لګولے شوي وي.

**ـــ شناسي** :- (ف تر ،اس ، مو) د بوټو د علم پوهه ، د بوټو د علم مهارت ، باټني.

**نباتي** :- (ن + با + تي) (ع پ تر ،صف) (۱) نبات (بوټو وغېره) سره تعلق لرونکے (۲) د بوټو وبښو نه / څخه جوړ شوے لکه : نباتي تېل.

**نباش** :- (ن+با+ش) (اس،مذ،ج ـان) د کفنونو غل ، کفن کښ.

څوک ژوندي لوټي بې دربغه قزاقـــان دي
څوک نباش غونډې سابق د مړو پوشاک ته (حافظ)

**نباض** :- (ن + ب + با + ز) (ع ، اس ، مذ ، مو ـــــ ه) (۱) نبض پېژندونکے ، نبض شناس د نبض نه / څخه مرض معلوموونکے ، هغه حکیم یا طبیب چې د نـبض شناسۍ مـاهر وي . (۲) هوښیار،دانا ، د زړهٔ پـه حـال پوهېدونکے.

**نبراس** :- (ن+ب +ر + ا + س) (ع،اسم ، واحد ، مذ) ډیوه ، چراغ.

**نبرد** :- (ن + ب + ر + د) (ف ، اس ، مذ) جنګ ، جګړه ، پیکار.

**ـــ آزما** :- (ـــ آ + ز + ما) (ف تر ،اس ، مذ) جنګ کوونکے ، جنګیالے ، توریالے.

**ـــ آزمائي** :-(ـــ آ + ز + ما + ئي) (ف ، تر ، آس ، مو) جنګ کونه ، جنګېدنه ، جګړه کونه.

**ـــ پیشه** :- (ـــ پي + شَ) (ف تر ، صف) هغه چې پېشه ئې جنګ کول وي .جنګیالے ، توریالے.

**نبض** :- (ن + ب + ض) (ع، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) د وینې د دوران لـه کبله د رګونو ټوپونه وهل.د رګونو حرکت.خصوصاً د لاس د رګونو ټوپونه وهل.

**په ـــ پوهېدل** :- د نبض په ذریعه د مرض معلوملو علم لرل. مجازاً: د چا په خوي خصلت پوهېدل.

**ـــ شناس** :- هغه چې د چا خوي خصلت پېژني ، د چا پـه خوي خصلت پوهېدنه.

**ـــــ شناسي** :-د نبض د حرکت په کتلو د مرض معلومونه.نباضي.

**ـــــ کتل** :- د مرض معلوملو دپاره د نبض د حرکت کتل.

**نبوت** :- (ن + بُ + و + وَ + ت) (ع ،اس ،مذ) (۱) خبر رسونه ، خبر رساني . (۲) د نبي منصب ، پیغمبري ، رسالت ، د خدا ے پاک احکام رسول.

**نبوي** :- (ن + ب + وي) (ع،اس،مو) نبي سره تعلق لرونکے ، نبي ته منسوب.

**نبي** :- (ن + بي) (ع ، اس ، مذا ، ج ـــ ان / انبیاء) (۱) خبر ورکونکے ، د پېښـن ګوئي کوونکے. (۲) پېغمبر د خدا ے پاک پېغام اولس ته رسوونکے.

**ـــ مرسل** :- (ـــ (ئي) مُ + ر + س + ل) (عف،تر،اس ،مذ) هغه نبي چې کتاب هم پرې نازل شوے وي.

**نبیذ** :- (ن + بي + ذ) (ع ،اس ، حدا ، مذ) (۱) د کجورو وغېره نه جوړ شوي یو قسم شراب.(۲) د تازؤ مېوؤ رس.

**نبیره** :- (ن + ب + ي + ر) (اسم ، واحد ، مذ) د څلورم پشت اولاد ، کودے.

**نبیل** :- (ن + ب + ي + ل) (صفت) هوښیار ، پوې ، فرزانه.

**نیټ** : (ن + پ + ټ) (صف ، مـذ) (۱) فضـول ، بېکـاره ، بـې فائـده . (۲) نامناسب ، ناموزون.

**نپل** : (ن +پ + ل) (اسم ، واحد ، مذ) تے ، مېمے ، د ټوپک زخه.

**نت** :- (ن + ت) (اسم ، واحد ، مذ) (۱) د کفارو په جنګ کښې تر لاسه شوے مال. مالِ غنیمت.(۲) د پوزې یو پسول ، نته.

**نت** :- (ن + تِ) (فعل) هر وخت ، همېشه ، مدام.

**نتاج** :-(ن + ت + ا + ج) (اسم ، واحد ،مذ) زېږه ، بچے راوړنه.

**نتائج** :- (ن + ت + ا + یج) (اسم ،جمع) د نتیجه جمع ، نتیجې.

**نتراکی** :- (ن + ت + را + ک + ی) (اس ، مو) یو قسم بوټے دے .چې خوند ئې تریو دے.وړې وړې پاڼې لري.د اوښانو خوراک دے.

**نتکی** :- (ن + ت + ک + ی) (اس ، مو) وړه نته ، د پوزې یو سپک کالے.

**نتل** :- (ن + ت + ل) (مص) مهارول ، ایلول ، نته ، وراچول.

**نتل** :- (ن + ت + ل) (مص) خوار او زبون کول .په وهلو ټکولو ډېر خرابول. لوټل ، شوکول ، تاراج کول.

**نتلے** :- (ن + ت + لے) (پ تر،اس،مف ،مذ ،ج ـــ لي) برباد شوے ، تباه شوے ، تخت و تاراج شوے.

نښنانې ئې په جهان کښې دیده نشي
هسې ورک شول د هجران سورو نتلي (عبدالقادر)

**نتلے** :-(ن + ت + لے) (اس ، مف ، مذ ، مو ـــ لي) (۱) خوار زبون کړے ، لوټلے شوے ، شوکولے شوے ، تارج شوے.(۲) سپېرهٔ ، بدبخت ، منحوس ، خفه ، غمژن.

بې دستاله مخه نورمې هېڅ نشته په مخکښې
هسې رنـګ نتلے پـه نـاتـار یـم ستا د مـــخ (رحمان بابا)

**نتو** :- (۱) یو عرضي سپک نوم. (۲) نتهـو چې د هندوانو نوم دے. متـل : د نتو یارستو.

**نتونکے** :- (ن + تو + ن + کے) (پ تر،اس،فا،ج ـــ کي) بربادؤنکے،تبـاه کوونکے، هلاکوونکے ، خوارؤونکے.

**نته** :-(ن + ت) (هـ ،اس،مو،ج ـــــ تې) (۱) د پـوزې یـو غـټ کـالے .(۲) هغـه وړوکے شان لرګین مېخ چې د اوښ پـه پـوزه کښـې ورکـولے شي.دې سره د مهار پړے تړلے شي.

وے مې چې له نتې د چارګل په پوزه زېب کا
وے ئې دا خبره کړه هـالـه چې چاپه تا کړې (خوشحال)

**نتي** :- (هـ ، صف) سره نښتې ، سره یو ځاے.(هـ نتهي).

**ـــ کول** :- کاغذونه وغېره په یو تار کښې سره تړل.

**ـــــ کېدل،چا سره** :- چا سره منسلک کېدل.چا پورې نښتـل.چا سره (د مطلب دپاره) ملګرے کېدل.

**نتیالی** :- (ن + ت + ي + ا + لی) (صفت) په پوزه نته یا نتکی لرونکې.د نتې مېرمن.

**نتیجه** :- (ن + تي + ج) (ع،اس ،مو،ج ــجې / نتائج) (۱) حاصل (۲) غـرض ، مطلب (۳) انجـام ، اخـره خاتمـه (۴) پـېدائش ،اولاد ، بچے (۵) د امتحـان فیصله (۲) (منطق) یو قـول چې د صغرٰی او د کبرٰی د اجزاؤ د یـو ځـاے کولو نه / څخه وروستو مکرر لفظ ترې وښکلے شي نو چې څهٔ پاتې شي.

**ـــــ اېستل** :-

**ـــــ اوښـکل** :-(۱) د امتحـانونو نـه وروستـه د پـاس کېـدونکو او د فېـل کېـدونکو د نومونـو اطـلاع کـول . (۲) انجـام معلومـول ، اخـر خاتمـه معلومول.

**ـــــ بخـش** : (ـــ ب + خ / ش) (ف تر ، صف ،مذ ،مو ــــ ه) هغـه چې څهٔ

نتیجه وربخښي.فائده مند ، مفید .

**ـــــ ختل** :- انجام برسېره کېدل.اخره خاتمه څرګندېدل.

**ـــــ خرابېدل** :-انجام خرابېدل ، په انجام کښې تکلیف رسېدل .یا ناکامیابه کېدل.

**نتیجې** :- (ن+تي+جې)(۱) د ,,نتیجه ،، جمع ده .(۲) د ,,نتیجه ،، بدل شکل چې مغیره ؤ تورو سره راځي.

**بې ـــــ** :- هغه کار چې هېڅ انجام ئې نۀ وي.بې ثمره ، بې فائدې.

**ـــــ ته کتل** :- انجام ته کتل.د انجام انتظار کول.

**ـــــ ته رسېدل** :-د انجام خبره معلومېدل ، اخري حال وربښکاره کېدل.

**ـــــ وتل** :- د امتحان نه / څخه وروستو ، د کامیابه او د ناکامیابه امېدوارانو په حقله د فیصلې اعلان کېدل.ریزلټ وتل.

**نټ** :- (ن+ټ) ګرمي ، سخت تاؤ.

تۀ چې اوسې د ریاضت په تاؤ پوخ نشوې

د جحیم په بټ به سترې شې له نټه (مرزا خان)

**نټ** :- (ن+ټ)(اس،مذ،ج ـــ ونه) د لوبو یو څیز چې ترې تاؤ شوې مزې په زور رابښکلې شي او په زمکه واچولې شي نو بیا ترې ډېر ساعته تاوېږي ، (ار ـــ لټو).

لکه ګوئي هسې غلطان شه

که خوښي دې وي له نټه (احمد شاه ابدالي)

**نټ** :- (ن+ټ)(هـ ،اس ، مذ ، ج ـــــ ان)(۱) شعبده باز ، لوبغاړے ، تماشه ښودونکے.(۲) مکار ،دوکه مار.(۳) د یوې راګنۍ نوم.

**نټوے** :- (ن+ټ+وے) لاټو ، لټو ، نټ.

سندرې ئې لذت کا د نټوے په شان

ګډېږي ، جاهل په نۀ پوهېږي (د پښتونخوا شعر)

**نټه** :- (ن+ټ)(اس ، مو)د کوم کار د کولو نه څخه انکار.

**نټه** :- (ن+ټ) د ,,نټ ،، تانیث دے.

**نثار** :- (ن+ثا+ر)(ع ، مذ ، مو ـــ ه)(۱) قربان ، زار،فدا .(۲) خورونه ، پاشنه ، نوستنه.(۳) عاشق ، مئین.

**نثار** :-(ن+ث+ا+ر)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان)د نثر د لیکلو ماهر ، ښۀ نثر لیکونکے ، نثرنګار.

**جان ـــــ** :-(جا+ن ـــ)(ف تر،اس،مذ،ج ـــ ان) هغه چې ځان قربانوي ، سر ورکوونکے.سرځاروونکے ، فداکار.

**ـــــ کېدل** :- ځارېدل ، قربانېدل ، فدا کېدل ، صدقه کېدل.

**ـــــ کول** :- قربانول ، فدا کول ، ځارول ، صدقه کول.

**ثنار** :-(اس) قرباني ، صدقه.

په هجران کښې سرې سرې اوښکې

دا نثار دے ستا د شونډو (خوشحال)

**نثر** :- (ن+ث/ثَ+ر)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) (۱) هغه لیک یا عبارت چې په نظم کښې نۀ وي.(۲) خورونه ، نوستنه.

**ـــــ نویس** :- (ـــــ ن+وي+س).

**ـــ نګار** :- (ـــــ ن+ګا+ر)(عف تر ،اس ،مذ ،ج ـــ ان) هغه لیکوال چې په نثر کښې د لیکلو ماهر وي.

**ـــــ نګاري** :- (ـــــ ن+ګا+ري) :-

**ـــــ نویسي** :- (ن+وي+سي)(عف تر،اس ، مو) په نثر کښې لیک کونه

**نثري** :- (ن+ث+ري)(عف تر،صف) نثر سره تعلق لرونکے ، نثر ته منسوب ، لکه: نثري ادب.

**نج** :- (ن+ج)(اسم ، واحد ، مذ) خپل ذات ، خپل ځان ، خپل کور .

**نجح** :- (ن+ج+ح)(ع)(۱) رهائي ، خلاصے .(۲) کامیابي ، حاجت پوره کېدل.

**نجابت** :- (ن+جا+ب+ت)(ع ، اس ، مذ) نجیب والے ، شرافت ، بزرګي ، لوے خاندان سره تعلق لرنه.اصیل توب.

**نجات** :- (ن+جا+ت)(ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه) خلاصے ، رهائي ،خلاصېدنه.

**ـــــ دهنده** :- (ـــــ د+هـ+ن+د)(عف ،اس ،فا ،مذ ،ج ـــ ګان) نجات ورکوونکے ،خلاصے ورکوونکے ،خلاصوونکے .

**ـــــ موندل** :-

**ـــــ مینـدل** :- خلاصے موندل ،خلاصېدل ، رهائي موندل ، د ګناه یا د ګناهونو نه/ څخه معافي موندل.

**ـــــ موندونکے** :- (ـــ مو+ن+دو+ن+کے)(پ تر ،اس ،فا ،مذ ،ج ـــ کي) خلاصے موندونکے ، د کوم عذاب یا تکلیف وغېره څخه خلاصېدونکے . بخښلے کېدونکے.

**ـــــ ورکول** :- خلاصے ورکول، د کوم عذاب تکلیف وغېره نه / څخه خلاصول.

**نجاح** :- (ن+جا+ح)(ع ،اس ، مو) حاجت پوره کېدنه ، خلاصے رستګاري

**نجار** :- (ن+ج+جا+ر)(ف ،اس ،مذ ،ج ـــــ ان) ترکاڼ یو مارغۀ ته هم پښتانۀ ترکاڼ وائي چې منبوکه ئې اوږده وي چې مدام خپله خولۀ په لرګي لګوي.

**نجاري** :- (ن+ج+جا+ري)(تر،اس،مو) ترکاني ، ترکاڼتوب ، د ترکاڼ پېشه.

**نجاست** :- (ن+جا+س+ت)(ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه) پلیتي ، ګندګي ، ناپاکي ، پلیدي غلاظت.

د ګونګټ د ګـل له بویه نه بلا ده

ژواک ژوندون واړه په بوئي د نجاست (خوشحال)

**نجبا** :- (ن+ج+با)(ع ،اس،ج) د نجیب جمع ده. شریف او پاک خلق ، هغه خلق چې د لوړو خاندانونو سره تعلق.خانداني تعلق.

**نجتل** :- (ن+ج+ت+ل)(مص) لګول ، ټینګ نیول ، کلک نیول ، سوخول ، ورمنډل ، ورټومبل ، وردننه کول ، ورچوکه کول.

**نجتل** :- (ن+ج+ت+ل)(مص)(۱) سوخول ، ورمنډل ، وربښخول.

تا چې کوتې په خاطر دې زما نجتې ګوتې

شـو دې رنګ کـړې د عـاشق په وینو (مصري خان)

(۲) ودرول ، لګول (لکه تنبو) جګول.

ندیوان دے په کانګړه کښې

ورتـه نجـتې د غـم دار (مصري خان)

**نجتل** :- (ن+ج+ت+ل)(مص) ورننه یستل ، وربښخول ، ورمنډل ، ننبتل.

**نجتې** :- (ن+ج+تې)(اس ، مف ، مذ ، ج ـــ تې) منګلې لګول ، کلک نیول ، پنجې ورکړې.

**نجتنه** :- (ن+ج+ت+ن)(حمص) منګلې لګونه ، خپرې لګونه.

**نجس** :- (ن+ج+س)(صفت) پلیت ، ناپاک ، ګنده.

**نجل** :- (ن+ج+ل)(اسم ، واحد ، مو)(۱) نجلۍ ، جینۍ ، نجون (۲) هغه جینۍ چې کوېژدن شوې وي.

**نجلتوب** :- (ن+ج+ل+تو+ب)(پ تر ،اس ، مذ) د جینکتوب ورځې ، خصوصاً د کوژدنې او د وادۀ تر مېنځه عمر.

**نجلکۍ** :- (ن+ج+ل+ک+ۍ)(اس ، مو) جینۍ ، پېغلتوب ته نزدې جینۍ

**نجلکیانې** :- (ن+ج+ل+ک+یا+نې)(اس،مو، ج) د ,,نجلکۍ ،، بلـه جمع ده.

**نجلی**:- (ن + ج + ل+ی) (اس،مو،ج ــ نجوني) جینی ، نجل.

**نجم**:- (ن+ جُ / ج + م) (اس ، مذ ،ج ــ نجوم) (۱) ستورے ، ستاره ، سیاره . (۲) د زنانهٔ او نارینهٔ په نومونو کښې راځي.

**نجوم**:- (ن+ جو + م) (ع ، اس ، ج ) د ,,نجم،، جمع ده. ستوري ، سیاره.

هر اصحاب ئې لکه ستوري د هدٰی دي

د هــوٰی د لار ښېون کانــدې نجـــوم دي (خوشحال)

(و ــ علم نجوم) .

**ـــــ بین**:- (ـــ بي + ن) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د ستورو مشاهده کوونکے ، د ستورو د علم پوهان ، منجم.

**علم ــــ**:- (ع + ل + م ـــ) (عف ، تر ،اس ، مذ ) د ستورو علم ، ستاره شناسي ، د ستورو په ذریعه د راتلونکي وخت د حال د معلومولو علم . (چې هیڅ حقیقت نهٔ لري).

**نجومي**:- (نَ/ نُ + جو + مي) (عپ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د نجوم د علم پوهــان وي . ستاره شـناس ، د سـتورو پـه ذریعـه د مسـتقبل حـال معلوموونکے .

**نجونه**:- (ن + جو + ن) (اس،مو،ج ) د نجلی جمع ده. جینکی ، نجوني.

**نجیـب**:- (ن + جـي + ب) (ع ،صـف ، اس ، مـذ ، ج ـــ ان/ نجبـا) شـریف ، خانداني ، هغه سړے چې د لوے اوشریف خاندان سره تعلق لري.

**ـــ الطـرفین**:-(ـــ (ب+ط+ ط+ر+ فې + ن) (ع ، تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) هغـه سړے چې د مـور او پـلار د دواړو طرفـه د اوچت او شریف خاندانونو سره تعلق لري.

**نچا**:- (ن + چا ) (اسم ، واحد ، مؤنث ) نڅا ، ګډا ، (م ـ هندي).

**نچوړ**:- (ن + چ+ و+ ړ ) (اسم ، واحد ، مذکر ) نچوڼ ، نڅوړ ، (۱) له څهٔ څیزه ویستلي شوي اوبـهٔ . عـرق (۲) خلاصـه ، لـب لبـاب (۳) انجام ، نتیجه (۴) صفت . وګورئ : نچوړي (۵) لـه څهٔ څیزه پـه زور سره اوبـهٔ وبسـتنه . څبېښ . (م. هندي).

**نچــوړول**:- (ن + چ+ و + ړ + و +ل) (مصـــدر متعدي) نڅــوړول ، نچوڼــول ، څبېښـل ، له څهٔ څیزه په زور سره اوبهٔ یا عرق وبسـتل ، کمزورے کـول ، منده کول.

**نچوړون**:- (ن + چ+ و + ړ + و + ن) حاصل مصدر ، وګورئ : نچوړول.

**نچوړونکــے**:- (ن + چ+ و + ړ + وو+ ن + کــے) (فاعل ،واحد ،مــذکر ، جمــع نچوړونکي) مؤنث نچوړونکې ، وګورئ : نچوړول.

**نچوړونګ**:- (ن +چ+ و+ړ+و+نګ) حاصل مصدر ،وګورئ : نچوړول.

**نچوړونه**:- (ن +چ+ و + ړ + و + ن) حاصل مصدر ، وګورئ : نچوړول.

**نچوړي**:- (ن + چ+ و + ړي) (صفت) نچـوني ، نچـوړ ، نڅوړي . (۱) هغـه څیـز چې اوبـهٔ یا عـرق ترې وبستلے شي . نچوړ کړے شوے . (۲) کمزورے کړے شوے . مانده کړے شوے .

**نچوړېدل**:-(ن + چ+ و + ړي +دل) (مصدر لازم) نڅوړېدل ،نچوڼېدل ، څبېښلے کېدل . (۱) په زور سره د څهٔ څیـزه اوبـهٔ یا عـرق وتـل . (۲) مانده کېدل ، کمزورے کېدل.

**نچوړېدن**:- (ن + چ+ و + ړي + دن) (حاصل مصدر) وګورئ : نچوړول.

**نچوړېدنګ**:- (ن + چ+ و + ړي +دنګ) (حاصل مصدر) وګورئ : نچوړول.

**نچوړېدنه**:- (ن + چ+ و + ړي + دهٔ + نه) (حاصل مصدر) وګورئ : نچوړول.

**نچوړېــدونکے**:- (ن + چ+ و + ړي + دون + کــے) (فاعــل ،واحد ،مــذکر) جمــع : نچوړېدونکي . مؤنث : نچوړېدونکې . وګورئ : نچوړېدل.

**نچوړېــدهٔ**:- (ن + چ+ و + ړي + دهٔ) (حاصـل مصـدر او د ماضـي اسـتمراري د واحد غائب صیغه) . وګورئ : نچوړېدل.

**نچول**:- (ن + چ+ و + ل) (مصدر ،متعدي) وګورئ : نڅول سره د لوازماتو .

**نچه**:-(ن + چ + ه) (اسم،واحد ،مؤنث) نل ، نے ، نېچه ، وګوري : نل.

**نچوڼ**:- (ن + چ + و+ ڼ) (اسم ، واحد ، مذکر) وګورئ : نچوړ .

**نچوڼول**:- (ن + چ + و+ ڼ + ول) (مصدر ، متعدي) وګورئ : نچوړول سره د لوازماتو .

**نچوني**:- (ن + چ + و+ ني) (صفت) وګورئ : نچوړي.

**نچوڼېــدل**:- (ن + چ + و+ ڼــې + دل) (مصـدر لازم) وګـورئ : نچوړېـدل سـره د لوازماتو .

**نچېدل**:- (ن + چ + ې + د + ل) (مصدر لازم) وګورئ : نڅېدل سره د لوازماتو .

**نڅا**:- (ن + څ (ث) سا) (اسم،واحد ،مؤنث) ګډا ، رقص ، ناڅ ، ډانس ، نچا .

**ــــ کول**:- ګډېدل ، رقص کول ، ګډا کول ، نچېدل ، نچا کول.

**نڅځ**:- (ن + څځ) (اسم ، واحد ، مذکر) وګورئ : تبر .

**نڅښی**:- (ن + څ+ ښی) (اسم ، واحد ، مو) چاړهٔ ، چړوکی .

**نڅل**:- (ن + څ (ث) څل) (مصدر) ګډېدل ، نڅا کول ، ناڅل .

**نڅوړ**:- (ن + څ (ث) و + ړ ) (اسم ،واحد ،مذ ) وګورئ : نچوړ .

**نڅوړول**:- (ن + څ (ث) + ړ + و+ ل) (مصدر) نچوړول . د لمدې کپړې نه تاؤولو سره اوبهٔ ویستل (هـ نچوړونه).

**نڅوړي**:- (ن + څ + و + ړي) (صفت) وګورئ : نچوړي.

**نڅوړېدل**:- (ن + څ + (ث) +ړ + ې + دل) (مصدر) نچوړېدل ، د لمدې کپړې نه د تاؤولو په ذریعه اوبهٔ ویستل .

**نڅول**:- (ن + څ + (ث) + و + ل) (مصدر) ګډول ، په نڅا کول ، نچول.

**نڅولے**:- (ن + و + څ (ث) و+لے) (صف،واحد ،مذ ) وګورئ : نڅول.

**نڅون**:- (ن + څ + (ث) و + ن) (حاصل مصدر) وګورئ : نڅول.

**نڅونکے**:-(ن + څ (ث) و + نکے) (فاعل ، واحد) ج : نڅونکي ، مؤنث: نڅونکې . ګډېدونکے ، نڅاکونکے ، رقاص.

**نڅونګ**:- (ن + څ + (ث) + ن + ګ) (حاصل مصدر) وګورئ : نڅول.

**نڅونه**:- (ن + څ + (ث) و+ نه) (حاصل مصدر) وګورئ : نڅول.

**نڅی**:- (ن +څ + (ث)+ی) (اس،مو) ګډېدونکې ښځه ،جینی ،ناڅګره رقاصه

**نڅے**:- (ن + څ + (ث) ے) (اس،مـذ) ګـډونکے سـړے / هلـک ، رقـاص ، ګډاکونکے .

**نڅېدل**:- (ن + څ (ث) + ې + د + ل) (مصدر لازم) ګډېـدل ، ګـډا کـول ، رقص کول ، نڅا کول.

**نڅېدونکے**:- (ن+څ (ث) + دو+ ن + کے) (اس،مذ) ګډېـدونکے ، ګـډا کوؤنکے ، نڅا کوؤنکے ، ناڅګر .

**نحافت**:- (ن + ح + ا+ف+ت) (ع،اس،مذ ) کمزوري ، مانده والے .

**نحــس**:- (ن + ح + س) (صـفت) بـدبخت ، سـپېره ، منحـوس ، بدمرغـه ، نامبارکه ، بدشګونه .

نحس او سعد اووهٔ ستوري

تــر دا نــور نشتــه لابلند (خوشحال)

**نحس**:- (ن + ح + س) (ع) سمون نهٔ خوړونکے ، ناسازګار ، ناموافق.

**نحســه ورځ**:- (ن + ح + ســه + و+ ر+ځ) منحوســه ورځ ، ســپېره ورځ ،بیــا وروسـتی چارشـنبه د هـرې میاشـتې نحسـه ورځ ده ،وائـي ښـهٔ خوشـحال ختیک .

**نحسـیت**:-(ن + ح + سـي + ي + ت) (اسـم،مذ) سـپېرهٔ تـوب ، سـپېرهٔ والـے ، نحوست .

**نحل**:- (ن + ح + ل) (ع،اسم ، واحد ، مو) د شاتو مچی .

**نحو**:- (ن + ح + و) (ع) (۱) طور طریقه ، لار ، روش . (۲) د ګرامر هغه برخه

چې په کښې د کلماتو رغونه او په خپله کښې په تعلقاتو بحث کولے شي.

**صرف و ـــ**:- (ص+ر+فو ـــ)(عف، تر، اس، مو) د گرامـــر دواړه برخې چې په يوه کښې په کلماتو بحث وي. (حرف) او په بله کښې په مرکباتو او جملو. پوره گرامر د ژبې په حقله مکمل قواعد.

**نحوست**:- (ن+ح+و+س+ت)(اسم، واحد، مذ) سپېرۀ توب، بدبختي، بدمرغي.

**نحوي**:- (ن+ح+ر+وي)(ع)(۱) د نحو علم سره تعلق لرونکے. نحو ته منسوب (۲) د نحو د علم ماهر، د اشتقاقاتو د علم پوهان.

**نحيف**:- (ن+ح+ي+ف)(صفت) کمزورے، مانده، وچ کلک، نرے نروچکے، ډنگر، ناتوانه.

**نخ**:- (ن+خ)(ف،اس،ج) کچه رېښم، اوم رېشم، د رېښمو يا د سپنسو تار.

**نخ**:- (ن+خ)(اس،ج) د وونې نرۍ څانگې، مچرکے، چېرکے، نوده.

**نخاس**:-(ن+خا+س)(اس، مذ، ج ـــ ونه)(۱) منډۍ، د څاروؤ منډۍ، بازار مارکيټ.(۲) هغه بازار يا منډۍ چې په کښې غلامان خرڅولے شي.

**په ـــ ختل**:- (۱) په بازار يا منډۍ کښې خرڅېدل (۲) شرمنده کېدل، سپکېدل

**نخاس**:- (ن+خا+س)(اس، مذ، ج.ونه) څمڅۍ، کاشوغه.

**نختابي**:- (ن+خ+تا+بي)(ف تر،اس،مو) د نخ يعني د تار تاوؤنه.

**نختۍ**:- (ن+خ+تۍ)(اسم،واحد، مو) غم، بلا، سانحه، مصيبت.

**نخج**:- (ن+خ+)(اس، جم) د يو قسم گياه نوم دے.

**نخچه**:- (ن+خ+چَ)(اس،مو،ج ـــ چې) نخښه، نشانه، تصوير، (فارسي نقشه)

**نخچير**:- (ن+خ+چي+ر)(ف،اس،مذ،ج ـــ ونه) ښـــکار کــــړے شوے ځناور وغېره، ښکار، صېد.

ښکاري سپے چې د نخچير په ښکار کښې ښۀ شي
لـــه خـــوښۍ ئـــې پـــه مـــخ مـــړي او شمـــال (خوشحال)

**ـــ کول**:- ښکار کول، صېد کول.

**نخرو**:- (ن+خ+رو) د "نخرې" (جمع) بدل شکل دے چې د مغيرهٔ تورو سره راځي.

**نخره**:- (ن+خ+ر)(اس،مو،ج ـــ رې)(۱) کبځ، ناز، ادا، عشوه، کرشمه (۲) پېښې، نقل (۳) د ټوقو يا د خندا څيز.

**ـــ باز**:- (ـــ با+ز)(ف تر،صف، مذ، مو ـــ ه)(۱) نخرې کوونکے، ناز و ادا کوونکے. (۲) انې بانې کوونکے.

**ـــ بازي**:- (ـــ با+زي)(پ تر،اس، مو)(۱) نخرې کونه،عشوه بازي، ناز ادا (۲) انې بانې،د دروغو انکار.

**نخرې**:- (ن+خ+رې)(۱) د "نخره" جمع ده. (۲) د "نخره" بدل شکل دے چې د مغيرهٔ تورو سره راځي.

**ـــ کول**:- (۱) مکېځونه کول، ناز و ادا کول. عشوې کول. (۲) انې بانې کول. د کوم کار په کولو کښې د دروغو نه (انکار) کول.

**نخـړي**:- (ن+خ+ړي)(اس،جم) يو قسم حلوا ده چې د اوړو او د کچو نه جوړولے شي.

**نخساني**:- (ن+خ+س+ا+نے)(اسم، واحد، مذ) لـه گېـډې بـې نېتـې غورزېدلے بچے. زيان شوے ماشوم.

**نخستين**:- اول، وړومبے.

تـــل اوبۀ په نري تار باندې ماتېږي
عقل و هوش نخستين راځخه يووړ (خوشحال)

**نخسے**:- (ن+خ+سے)(اس، مذ، ج ـــ سي) هغه لرگينه اله چې وړې پرې

تاوولے شي.

**نخسه**:- (ن+خ+سه)(اسم،واحد، مو) وگوري: نسخه.

**نخش**:- (ن+خ+ش)(اسم،واحد، مذ) وگورئ: نقش.

**نخش**:- (ن+خُ+ش)(اسم، واحد، مذ) وگوري: نخوش.

**نخشب**:- (ن+خ+ش+ب)(اس،مع)(۱) په ترکستان کښې د يو ښار نوم. (۲) پخوا ربن مقنع يوه مصنوعي سپوږمۍ جوړه کړې وه. چې "ماه نخشب" بللے شي.

**نخشه**:- (ن+خ+شه)(اسم، واحد، مو) وگوري: نقشه، نښه.

**نخښ**:- (ن+خ+ش)(اس، مذ، ج ـــ ونه) کنجک، د وسپنې هغه پنجه چې د دېگ (يا دېگچې) نه پرې غوښه را وباسي.

**نخښه**:- (ن+خ+ش) يا (ن+خ)(۱) نشان، هدف،نخه،نښه. (۲) اثر، داغ، علامه. (۳) د وادۀ په موقع د هلک يا د جينۍ په لاس د نکريزو نښان غوندې جوړول. (۴) هغه څيز چې د چا د ياگار په طور چاسره وي. (۵) د علامت يا د ثبوت په طور د ښودلو دپاره کوم څيز.

په خوب کښې نښې رالېږي چې درپه شمه

**ـــ لگول**:- نخه لگول، نښه لگول. په وادۀ کښې يو رسم دې چې د هلک د کور زنانه د جينۍ کور ته ځي نکريزې وړي او په دغو نکريزو د جينۍ په لاس نخه غوندې جوړوي او بيا دغه شان د جينۍ د کور زنانه د هلک کور ته راځي او د نکريزو نښه لگوي.

**ـــ ويشتل**:- نشانه بازي کول.

**په ـــ کول**:- (و ـــ په نخه کول يا په نښه کول).

**ـــ نښانه**:- پته او نخه، سراغ.

**نخل**:- (ن+خ+ل)(ع، اس،مذ، ج ـــ ونه)(۱)(ع) د کجورې ونه. (۲) هر قسم ونه.

**ـــ بند**:- (ـــ ب+ن+د)(ف تر،اس،صف،مذ،مو ـــ ه) مالي، بوټي لگوونکے

**ـــ حيات**:- (ـــ(ل)+ح+يا+ت)(ف،تر،اس، مذ) د ژوند ونه، ژوند.

**ـــ زرغونېدل**:- ونه يا بوټے شين کېدل، ونه يا بوټے ټوکېدل.

دربغه نخل د عشق نه وے زرغون شوے
چـــې لـــه ښاخـــه ئې د غم ثمر پېدا شۀ (رحمان بابا)

**ـــ طور**:- (ـــ(ل)+طو+ر)(عف، تر،اس،مذ) د طُور د غرونه، هغه ونه چې په کښې حضرت موسىٰ عليه السلام ته د خدائے پاک جلوه ښودلې شوې وه.

**ـــ تابوت**:- (ـــ(ل) تا+بو+ت).

**ـــ ماتم**:- (ـــ(ل)+ما+ت+م)(ف تر،اس، مذ)(۱) هغه بوټے يا شنه څانگه، کومه چې د ځوان مړي د تابوت سرته تړلے شي. (۲) يو قسم ارائش چې د مړي په تابوت وړلے شي.

**ـــ مريم**:- (ـــ(ل)+م+ر+ي+م)(عف تر،اس،مذ) د کجورې هغه وچه شوې ونه د کومې تر لاندې چې د حضرت عيسىٰ[۴] د زېږون په وخت د هغۀ مور، حضرت مريم ناسته وه. ددې له برکته وائي چې دغه ونه شنه شوه.

**نخلستان**:- (ن+خ+ل+س+تا+ن)(عف،تر،اس، ظر، مذ، ج ـــ ونه) په صحراؤنو کښې هغه ځائے چېرته چې د کجورې ډېرې ونې وي. داسې ځايونه اوبۀ هم لري او شنه هم.

**نخوت**:- (ن+خو+و+ت)(ع، اس، مذ) کبر، لوئي، غرور.

**نخود**:- (ن+خو+د)(ف،اس،جم) چڼه، مشهوره غله.

**نخودي**:- (ن+خو+دي)(ف تر،اس، صف)(۱) نخود (چڼو) سره تعلق لرونکے. چڼې ته منسوب. (۲) د چڼې په شان (۳) د چڼې په شکل (۴)

د چنهو د رنګ واله.

**نخوش** :- (ن + خُ + و + ش) (ف ،اس،مذ ،ج ـــــونه) کونډه ،نرګوش ، ( د کبانو د نیولو ګُنډه).

د زلفینـو سـر ئـې تاؤ لکـه نخوش د ماهي ګر شو
کله وي چې خوشحال خلاص شي له دې انکه نخوشه (خوشحال)

**نخولېدل** :-(ن + خـو + لـې + د + ل) (مـص) نولېـدل ، زړۀ خـوړل ، پـه زړۀ کښـې کړېدل.

تش شه له خروشه څو په تا کېږي له جوشه
ژاړه ، ژاړه ، ژاړه پــــه سبا بېګا نخولېږه (خوشحال)

**نخیل** :- (ن + خي + ل) (ع ، اس ، مذ ) د کجورې ونه.

**ندا** :- (ن+دا) (ع ،ف،اس ،مو،ج ــګانې) اواز ، غږ ، ږغ ، صدا .

**ـــــ راتلل** :- اواز راتلل ، غږ / ږغ اورېدلې کېدل ، صدا راتلل.

**ـــــ ورکول** :- اواز ورکول ، غږ (ورته) کول.

**ـــــ کېدل** :- اواز کېدل ، غږ کېدل ، بللې کېدل.

چې ندا د عاشقۍ په عاشق وشوه
د غفلت له خوبه پاسېدۀ بېدار شۀ . (رحمان بابا)

**نداپ** :- (ن + دا + پ) (و ـــــ نتداپ یا نداف).

**نداپي** :- (ن + دا + پي) (و ـــــ نتداپي یا ندافي).

**نداف** :- (ن + د + دا + ف) (ف ،اس،مذ ،ج ـــان) نتداپ ، ډانډت مار .

اورنګزېب او شاهجهان غونډې اشراف
صدقـــه شـــه د منصور غونډې نداف (رحمان بابا)

**ندافي** :- (ن + د + دا + في) (ف تر ،اس ، مو) د نتداپ کار یا پېشه . نتداپي ،ډانډت ماري لکه : د نتدافۍ فابریکه.

**ندامت** :- (ن + دا + م + ت) (ع ،اس،مذ ،ج ـــونه) (۱) نادم کېدانه ، پښېمانه .(۲) شرمندګي ، خجالت.

**ـــــ راتلل** :- پښېماني راتلل ، پښېمانه کېدل.

نن د کښلیو د دیدن نتداره ګوره
او کنـــــه ګانده به درشي ندامت (خوشحال)

**ـــــ کېدل** :- پښېمانه کېدل ، شرمندګي کېدل.

**ـــــ ور دوڅار بدل** :- شرمنده کېدل ، خجل کېدل ، پښېمانه کېدل.

**ندائیه** :- (ن + دا + ئ + يَ) (ع تر ،صف) هغه جمله چې په کښې د ندا توري (او ورسره د منادي اسم) راغلي وي.

**ندائي** :- (ن + دا + ئي) (اس ، صف ، ندا سره تعلق لرونکې ، اواز ته منسوب.

**ندر** :- (ن + د + ر) (اسم ، واحد ،مذ ) ځار ، قربان.

**ـــــ کول** :- قربانول ، فدا کول.

**ندرت** :- (ن + د + ر + ت) (ع ،اس،مذ) نادر والې ، عجیبه والې.

**ندرندې** :- (ن + د + ر + ن + دې) (اس،مو،ج )د ندرور جمع ده.

**ندرور** :- (ن + د + رو + ر) (اس ، مو ، ج ــــــ یانې) د خاوند خور ،ددې جمع ,, ندربندې ، ، هم راځي.

**ندما** :- (نُ + د + ما ) (ع،اس،ج) د ,, ندیم ، ، جمع ده.

**ندیم** :- (ن + دي + م) (اس،مذ ،ج ـــان / ندما ) ملګرې ، همنشین ، دوست ، رفیق ، مصاحب.

**ندئ** :- (ن + د + ئ) (هـ ،اس،مو ) قدرتي واله ، خوړ.

**نړ** :- (ن + ړ ) (هَـ ،اس ،مذ ) هلک .

زوړ زړوکې د ځوانۍ خوبونه پرېږده
تۀ په زوړ عمر کښې وائې ځان ته نړ (محمد بن طالب)
(هندکو ـ ننډه یا نډا ).

**نذر** :- (ن + ذ + ر) (ع ، اسم ،مذ ،ج ــــونه) منښته ، نیاز د حاجت پوره کېدلو دپاره د خدای په نامه په خپل ځان څۀ کار یا څیز په خپل ځان واجب ګرځول.

**ـــــ کول** :- په نذرانه کښې ورکول. پېشکش کول.

که ئې نذر کړې و پیر ته
خوشحال درومي په خندا (رحمان بابا)

**ـــــ منل** :-

**ـــــ په ځان اېښودل** :- منښته کول.د کوم څیز د خېرات کولو منښته کول.

**ـــــ ورکول** :- منښته ورکول.د منښتې څیز وغېره ادا کول.قرباني کول.

**نذرانه** :- (ن + ذ + را + ن) (ف،تر،اس ،مو،ج ــــ نې) پېشکش ، تحفه ، هدیه ، سوغات.

**ـــــ ورکول** :- (۱) پېشکش ورکول .تحفه ورکول ، هدیه ورکول .فیس ورکول . (۲) د تحفې یا د عقیدت په طور څۀ رقم ورکول . (۳) (طنزاً) رشوت ورکول.

**ـــــ غوښتل** :- (۱) کوم رقم وغېره په طور د نذرانې یا عقیدت وغېره غوښتل. (۲) رشوت غوښتل.

**نذیر** :-(ن + ذ + ي + ر) (اسم ، صفت ،ع، مذ ، مو ــ ه) ویرونکې .د اخرت ویره په زړۀ کښې اچونکې .د حضور پاک ﷺ لقب .د نارینۀ او زنانۀ په نومونو کښې استعمالېږي.

**نر** :- (ن + ر) (ف ، اسم ، مذ ، ج ــــــ ان) د ماده ضد ، مذکر مجازاً: تکړه ، بهادر ، توریالې ,زړۀ ور ، غېرتمند ، غېرتي.

**ـــــ توب** :- (ـــ تو + ب) (پ تر ،اس ، مذ ) نارینتوب ، بهادري ، شجاعت ، غېرت

**ـــــ خوتې** :- (ـــ خُ + تې ).

**ـــــ خوتې** :- (ـــ خُ + تُ + ی) (پ تر، اس) هغه ښځه چې د نارینه ؤ په شان وړوکې شان پټ انداز هم لري.هغه ښځه چې د سړو په شان عادتونه لري.

**ـــــ ښځک** :- (ـــ خ / ش + (د)ز + ک ) (و ـــ نر ښځې ).

**ـــــ ښځې** :- (ـــ خ / ش (د) زې ) (پ تر ،اس،مذ ،ج ـــ خې) هغه سړې چې خوئې بوئې ئې د ښځو په شان وي.هیجړا ، مخنث.

**په ــــ زمري ځل اچول** :- (مجازاً ) د ډېرې زیاتې توري مېړانې کار کول .ډېر لوې او زوره ور دښمن زېر کول.

**ښځې او ـــــ** :- (خ / ش + (د) زې + او ـــ) (پ تر ،اس،ج) نارینه او زنانه ، مجازاً : ټول ، همه ، چې په کښې هم ښځې شاملې وي او هم سړي.

**نر په نره** :- (پ ـ ر + پَ + نره) (فعل) په نره ، په ډاګه ، په جار.

**نراد** :-(ن + رَ + ا + د) (اس ، صف ، مذ )د نرد لوبه کوونکې .وګورئ : نرد .

**نرخ** :- (ن + ر + خ) (ف ،اس،مذ ، ج ــونه) بها ، د خرڅون بیعه ، شرحه.

**ـــــ اېښتل** :- نوې نرخ جاري کول ، د څیزونو نوې قیمت مقررول.

**دبازار ـــــ** :- (د ، با + زا + ر ــــ) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ــونه)د بازار عام قیمت ، د خرڅون عامه شرحه.

**ـــــ مقررول** :- (و ـــ نرخ ټاکل ).

**ـــــ ټاکل** :- نرخ مقررول ، قیمت یا قیمتونه مقررول.

**ـــــ ختل / پورته کېدل** :- د څیزونو قیمتونه زیاتېدل ، د څیزونو ګرانېدل.

**ـــــ زیاتول** :- قیمت زیاتول ، د خرڅون شرحه زیاتول ، ګرانول.

**ـــــ زیاتېدل** :-

**ـــــ جنګېدل** :- قیمت زیاتېدل ، بیعه زیاتېدل ، ګرانېدل.

**ـــــ غورځېدل** :- د څیزونو قیمتونه کمېدل ، د څیزونو ارزانېدل.

**ـــــ کمول** :- په قیمت کښې کمې راوستل ، قیمت کمول ، په شرح کښې کمې

راوستل ارزانول.

**ـــــ ماتول** :- د ځیزونو قیمت مقررول ،نرخ کمول ، قیمتونه کمول.

**ـــــ نامه** :- (ـــــ نا + مَ)(ف تر ، اس ، مو ، ج ـــــ مې) هغه کاغذ یا کتاب چې په کښې د ځیزونو قیمتونه لیکلي شوي وي.

**نرخوش** :- (ن + ر + خو + ش)(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) کونډه ، د کبانو د نیولو کنډه ، نرغوش ، نرګوش.

نرم لفظ سخت ګردن لره نرخوښ دے
دا کمند د بلې سختې دنیـــا نۀ شي (یونس)
ګوندې وکاږي حمید د غم له ځاهه
یارې سازې کړې لښتۍ لکه نرخوښ (حمید)

**نرخه** :-(ن + ر + خَ) د ,, نرخ ،، یو قسم جمع ده . د ,, نرخ ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي. لکه : له نرخه وتل.

**لهـــ وتل** :- د عام مقرر شوي نرخ نه / ځخه خلاف عمل کول. مجازاً : د عام دود دستور خلاف عمل کول.لکه :

د کلیه ووزه له نرخه مه ووزه (متل)

**نرخے** :-(ن + ر + خے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ خې) نرخ مقرروونکے . حکم کوونکے ، قضاوت کوونکے ، فیصله کوونکے.

**نرد** :- (ن + ر + د)(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه)د شطرنج یوه مهره ، د چوسر د لوبې ګوټیه.

په هر ځۀ چې غم غلط شي واړه ذوق دے
کـــه په نرد که په شطرنج وي که په ښکار (خوشحال)

**نردبان** :- (ن + ر + د + با + ن)(ف،اس،مذ،ج ـــــ ونه) اندرپایه ، زینه ، پوړۍ ، پارسنګ.

نۀ کړې هغه کار چې نردبان شي بالاباْم ته
رغړې مخ پـــه زوږ لکـــه کرکنډه له جباله (حافظ)

**نرس** :- (ن + ر + س/سَ)(انګ ،اس ، مو ، ج ـــــ سې/انې) هغه جینۍ چې په هسپتال کښې د مریضانو خصمانه او ملهم پټۍ هم کوي . ماشوم لـه پټۍ ورکوونکې ښځه. (د نرس لفظ مؤنث دے.خو په س باندې زور ورکولو سره ترې زیاتي مؤنث هم جوړولے شي).

**نرـــــ** :- (ن + ر ـــــ)(انګ ، پ تر ، اس ، مذ) هغه نارینه زلمے چې د نرسانو کار کوي.مېل نرس.

**نرسري** :- (ن + ر + س + ري)(انګ ، اس ، مو ، ج ـــــ ګانې) ذخیره ، د بوټو ګلونو.د ماشومانو د پالنې او تربیت ځاے ، د وړو ماشومانو مدرسه.

**نرسنګ** :- (ن + ر + س + ن + ګ)(انګ ،اس ،مذ) د مریضانو خصمانه او تیمارداري.د نرس پېشه.

**نرسوے** :- (ن+ر+ س + وے)(اس ،مذ ،ج ـــــ وي) غرئیز انار ، یو قسم ځنګلي انارچې وړوکے شان وي. د انار پوستکے.

چې د عشق انار دانه لرې په زړۀ کښې
خپـــل پوستکے کړه پاره لکه نرسوے (علي خان)

**نرسوے** :- (ن +ر + س + وے)(پ تر ،اس ، مذ ، ج ـــــ وي) په نمر سوځېدلے ، نمر سوے.

**نرغټ** :-(ن + ر + غ + ټ)(و ـــــ نرغوټ).

**نرغوټ** :- (ن +ر + غ/غو + ټ)(اس ، مذ ، ج ـــــ ان) ځنګلي پیش ، غټ پیش ، یو قسم بوټے دے.

**نرغوښ** :- (ن + ر + غو + خ/ش)(و ـــــ نرخوش).

**نرک** :- (ن + ر + ک)(اس،مذ، ج ـــــ ونه) هغه رګ کوم چې د پښې شاتنۍ حصه کښې وي. یو قسم ننکۍ ده چې د نارینه د الت په سر راخېژي.

**نرکټیا** :- (ن + ر + ک + ټیا)(اس ، مذ ، ج ـــــ ټیي) وزګوړے ، د وزې لوے بچے.

**نرکچور** :- (ن+ر + ک + چُو + ر)(اس ، مذ) دا یو قسم دوائي ده . مجازاً: چلولے.

ماله بویه چې خاموش او پرده پوښ یم
کـه تـا خوند د یارۍ وران کړ نرکچور (علي خان)

**نرکښ** :- (ن + ر + ک + خ /ش)(اس ،مذ ،ج ـــ ونه) نرهوسے ، غرځه.

**نرکش** :-(ن + ر + ک + ش)(و ـــــ نرکښ).

**نرکښ** :- (ن + ر + ک + خ/ ش)(اس ،مذ ، ج ـــــ ان) غرئیزه وزه.هوسۍ.

**نرکوټک** :-(ن + ر + کو + ټ + ک)(انګ ، صف) هغه ځیز چې سړے نشه کوي ، د نشې راوستونکے ځیز ، بې سُده کوونکے ځیز.

**نرکۍ** :-(ن + ر + ک + ی)(پ تر،صف،اس،مو) د ,, نرکے ،، تانیث دے.

**نرکے** :- (ن + ر +کے)(اس ،مذ ،ج ـــ کي) د غر په دوه ؤ ځوکو په مېنځ کښې خم یا کوږوالے ، کوتل ، دره.

**نرکے** :-(ن + ر + کے)(پ تر،صف ، اس ، مذ ، مو ـــ کې) د ,, نرے ،، تصغیر دے.ډېر نرے نرے نروچکے ، ډېر باریک.

**نرګتے** :- (ن + ر + ګ + تے)(و ـــــ نر ښځے).

**نرګس** :- (ن + ر + ګ + س)(اس ، مذ ) د مشهور ګل نوم دې چې سپینې پاڼې او په مېنځ کښې زیړه کټورۍ شان لري.

**ـــــ بیمار** :- (ـــــ (س) بي + ما + ر)(پ تر،اس،مذ) ناجوړه یا ناروغه نرګس . د نرګس هغه ګل چې دننه کټورۍ ئې زیړه وي د معشوقې د ناجوړه (زیړو) سترګو له ورسره تشبیهه ورکولے شي.

**ـــــ شهلا** :- (ـــــ (س) ش + ه + لا)(ف تر ، اس ، مذ) د نرګس د ګل هغه قسم چې پاڼې خو ئې سپینې وي خو دننه کټورۍ ئې توره وي.شاعران ورله د معشوقې د سترګو سره تشبیهه ورکوي.

**ـــــ مخمور** :- (ـــــ (س) م + خ + مو + ر)(پ تر،اس ،مذ) نشه ور نرګس ، د معشوقې د سترګو سره ورله تشبیهه ورکولے شي . مستې سترګې ، شرابي سترګې.

**نرګسي** :- (ن + ر + ګ + سي)(ف تر،صف) د نرګس د ګل په شان رنګ یا شکل لرونکے.د معشوقې سترګو لـه ورسره تشبیهه ورکولے شي. لکه : نرګسي سترګې. یو قسم ټوکرے ؤ چې د نرګس ګلونه پرې جوړ شوي وي. یو قسم پولاؤ ، چې په کښې د اګو کوفتې په مېنځ نیمې کړې اېښودے شوي وي.

**نرګسي** :- (ن + ر + ګ + سي) غرئیز بیز چې د رمې نه وړاندې وړاندې ځي.

**نرګوړان** :- (ن + ر + ګو + ړا + ن)(اس ، مذ) ګاځره ، مشهوره مېوه چې په زمکه کښې پیدا کېږي.

**نرګوس** :- (ن + ر + ګ + و + س)(اس ، مذ) ځنګلي انار چې وړوکے او عموماً تریو وي. تریو انار.

**نرګوسه** :- (ن + ر + ګو + سَ)(اس،مو،ج ـــ سې) د غرئیز یا ځنګلي انار ونه ، د انار ونه.

**نرم** :- (ن + ر + م)(ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) پوست ، د سخت ضد .نازک ،په اسانه کړېدونکے یا ماتېدونکے ، ورو ، په مزه (رفتار وغېره) د وړو په لوبو کښې د سزا یوه طریقه چې مجرم له دوه ؤ ګوتو سره په لپچه ورو ورو ګذارونه ورکولے شي.سختو ګذارونو ته ګرم وئیلې شي.لکه : دا غل دوه نرم او دوه ګرم لګاؤ کړه.(یعني ګذارونه ورکړه).

**ـــــ باد** :- (ـــــ با + د)(ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) هغه هوا چې ورو ورو په مزه چلېږي.

**ـــــ تالو** :- (ــــــتا + لُو) (پ تر ،اس ، مذ ، ج ــــ ګان) په خولهٔ کښې د تالو شاتنۍ برخه چې ډېره پسته وي.

**ـــــ دل** :- (ـــــ د + ل) (پ تر ، اس ، صف ، مذ ،ج ـ ان) پوست زړهٔ واله ، د سخت زړي ضد .رحمدله ، نرم مزاجه ، مهربانه.

**ـــــ رو** :- (ـــــ رو) (ف تر ، صف) ورو ورو تلونکے ، سست رفتاره ، ډېر په سوچ او فکر کار کوونکے.

**ـــــ روي** :- (ـــــ ر + وي) (ف تر ، اس ، مو) ورو ورو تلنه ، په ډېر سوچ او احتیاط کار کونه ، نرم سلوک.

**ـــــ زبانه** :- (ـــــ ز + با + نَ) (فپ،تر،صف) پوست ژبے ، پستې پستې خبرې کوونکے ، خوږ ژبے.

**ـــــ زړے** :-(ز + ړے) (پ ،تر ،اس ،صف ،مذ ، ج ـــــ ړي) د نرم زړهٔ خاوند ،رحمدله،مهربانه (د سخت زړے ضد).

**ـــــ ګرم** :- (ـــــ ګ + ر + م) په کار کښې سر ګرم.

یو نخښبه درته وایم د بې شرم
په وعده په قول نهٔ وي نرم ګرم (خوشحال)

هر قسم حالات ، ښه او بد حالات.

**ـــــ ګرم پېښل** :- د ژوند نرم او سخت حالات زغمل.

**ـــــ ګیر** :- (ـــــ ګي + ر) (و ـــــ نرم طبیعته).

**ـــــ طبیعت** :-(ـــــ ط + بي + ع + ت).

**ـــــ مزاجه** :- (ـــــ م + زا + جَ) (ف ، تر ، صف) هغه سړے چې په طبیعت یا خوي کښې ئې سختي نهٔ وي.نرم دله.

**ـــــ ماده** :- (ـــــ ما + د) (ف تر ،اس) نر او ماده ، سړے او ښځه .د ښي طرف او د ګس (کيڼ) طرف طبله. د دروازې چوړ دوه برخې.

**نرمول** :- (ن + ر + م + وُ +ل) (مص) پستول ، سختي لرې کول ، ختچن کول . ټينګوالے لرې کول ، (اوبهٔ ورګډول) اسانول ، سستول.

**لهجه ـــــ** :- په خبرو کښې پوستوالے او نرمي پیدا کول.

**زړهٔ ـــــ** :- په زړهٔ کښې نرمي پیدا کول ، د زړهٔ سختي لرې کول ، مهربانه کول ، رحمدله کول.

**نرمه** :-(ن + رمَ) (اس ،مو،ج ـ مې) د ,, نرم ،، تانیث دے.

**ـــــ لهجه** :- (ـــــ ل + ه + جَ) (عپ ، تر ، اس ، مو ، ج ـ جې) په پسته خولهٔ خبرې (کړنه).

**نرمه** :-(ن + ر + م) (اس ، مو ، ج ـــــ مې) د غوږ لاندینۍ زوړنده غوښه چې پسته او ملائمه وي. د یوې پخوانۍ ریښمینې نرۍ کپړې نوم. (خج په م باندې دے).

**نرمي** :-(ن + ر + مي) (ف تر ، اس ، مو) پوست والے ، پوسوالے ، ملائمت ، د سختۍ ضد.

**ـــــ کول** :- نرم سلوک کول ، سختي نهٔ کول.

**نرمئي** :- (ن + ر + م + ئ) (و ـ نرمه).

**نرمېدل** :- (ن + ر + مې + د +ل) (مص) پستېدل ، پوست کېدل ، سختي نهٔ پاتې کېدل ، ملائمه کېدل . رحم (په زړهٔ کښې) پیدا کېدل ، مهربانه کېدل. ټينګوالے نهٔ پاتې کېدل ، (د مائع څیز).

**نرمے** :-(ن + ر + مے) (اس ، مو ، ج) د ,, نرمه ،، جمع ده . د ,, نرمه ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ـــــ ګرمے** :- (ـــــ ګ + ر + مے) (پ تر ،اس ،ج) د ,, نرم ګرم ،، جمع ده . مجازاً: ښهٔ او بد حالات ، تودې سړې.

**نرو** :- (ن + رو) د ,, نري ،، (جمع) بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي لکه: د نرو ختو لړې اوبهٔ بانه وي .(متل).

د مانده زنانهٔ یو لقب.

**نر ناحقه** :- بالکل ناحقه ، برناحقه.

پــه یــارۍ ئې نرنــاحقــه نازېدلم
بېهوده مې په سراب د اوبو رش کړ (خوشحال)

**نروب** :- (ن + رو + ب) اوبلن مجازاً: نرم ، سست (د ټينګ ضد).

پــه وعــده د ګلرخانو چې امېد کړي
د اوبو نقش محکم نهٔ دے نروب دے (یونس)

**نروب** :- (ن + رو + ب) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــــ ه) د نرو اوبو په شان ، چې ټينګوالے نهٔ لري. نرم ، پوست.

**ـــــ کول** :- ټينګوالے لرې کول. نرمول ، پستول.

**ـــــ کېدل** :- نرمېدل ، پستېدل.

که هر دم ورته ژړا کړم فائده نشته
سنګين زړهٔ به ئې په چا نشي نروب (خوشحال)

**نروچکے** :- (ن +رو+ چ + کے) (پ تر،اس،صف،مذ،ج ـ کي) ډېر نرے مانده سړے ، ډنګر ، عموماً ,,نرے ،، سره د تاکید دپاره یو ځاے راځي .لکه نرے نروچکے سړے.

**نروڅکے** :- (ن + رو + (ت) س کے) (و ـــــ نروچکے).

**نروز** :- (ن +رو +ز) (صف ،مذ ،مو ـ ه) نرے ، نرے ، نروچکے.

هم ئې ښکلې پوړه پوزه
ښائسته ښــکلے نروزه (نورنامه)

**نرۍ** :- (ن + ر + ئ) (اس ، صف ، مو) د ,, نرے ،، تانیث دے.

**ـــــ اوبهٔ** :- (ـــــ او /وُ + ب) (پ تر ، اس ، جم) هغه اوبهٔ چې ټينګې نهٔ وي. مجازاً د هغو پيو یا د شوملو (شلومبو) په حقله وئیلے شي چې اوبهٔ په کښې ډېرې زیاتې وي.

**ـــــ ملا** :- (ـــــ م + لا) (پ تر ،اس،مو ، ج ـ ګانې) هغه ملا چې نرۍ وي . غټه او پېړه نهٔ وي. (د معشوقو ملا په حقله وئیلے شي) په ملا (پښت) کښې هغه برخه چې نسبتاً نرۍ او کم محیط واله وي.

**ـــــ وروځې** :- (ـــــ و + رُو + (د) زې) (پ تر ، اس ، ج) هغه وروځې چې ډېرې ګورې نهٔ وي. او د نرۍ کرښې په شان وي. (دمعشوقې د وروځو صفت).

**ـــــ وریجې** :- (ـ و + ري + جې) (پ تر ،اس،جم) د وریجو یو قیمتي قسم ، کمودې

**نري** :- (ن + ري) (اس صف ، ج) د ,, نرے ،، جمع ده .د ,, نرے ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ـــــ جوار** :- (ـ جَ / جُو + وا+ ر) (پ تر ،اس ، جم) د جوارو په شان یو بوټے چې ساق ئې نرے وي او په ښمبل کښې تخم پیدا کېږي. د څارو خوراک دے.

**په ـــــ رنځ اخته کېدل** :- د تپې بې مرض کېدل ، د سل دق ناروغي ورلګېدل . مجازاً: په اوږد سخت مصیبت کښې راګېرېدل.

**د ـــــ زړهٔ خاوند** :- نرم دله سړے ، رحمدله سړے.

**ـــــ نري رېښل** :- د سپنسو باریک باریک تارونه جوړول . مجازاً: ویرې اخستل.

**ـــــ غوښه** :- (غ + وَ + خَ/ شَ) (پ تر ،اس ، مو) د وړوکي څاروي لکه د ګډ ، چېلې غوښه.

**ـــــ والے** :- (ـــــ وا + لے) (پ ، تر ، اس ، مذ) نریتوب ، د ټينګوالي او د غټوالي ضد.

**ـــــ لار** :- (ـــــ لا+ ر) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـ ري) تنګه لار.

**ـــــ نرے** :- (ـــــ ن + رے) (پ تر ، صف ، اس ، ج ـ ري ـ ري) هغه چې ډېر

ګُور نهٔ وي۔لکه : باران نرے نرے وربږي۔

**ـــــ نرے باران** :- هغه باران چې څاڅکي ئې نري نري وي۔شبنم۔

**ـــــ نرے درد** :- (ـــــد+ر+د)(پ تر،اس،مذ) هغه درد چې ډېر زيات يا تکليف ده وي۔

**نرے** :- (ن+ر+ے)(صف،اس،مذ،ج ـــــري)(د غټ ضد) باريک۔ورو ورو چلېدونکے باد۔ کمزورے، مانده، ډنګر، د مانده او کمزورو سړو يو لقب۔

**ـــــ اواز** :- (ـــــا+وا+ز)۔

**ـــــ بږغ يا غږ** :- (ـــــغ/ږ+ګ)(پ تر، اس، مذ) هغه اواز چې د جينکو په شان وي۔د سړو په شان غټ نهٔ وي۔ ورو شان اواز۔

**ـــــ باران** :- (ـــــبا+را+ن)(پ تر،اس، مذ) د وړو وړو څاڅکو باران، پشم۔

**ـــــ باد**:-

**ـــــ شمال** :- هغه باد کوم چې ورو ورو وربږي۔

**ـــــ تار** :- (ـــــتا+ر)(پ تر، اس، مذ، ج ـــونه) هغه تار، که د سپنسو وي يا د بل کوم څيز، چې ډېر نرے وي غټ نهٔ وي۔

**ـــــ رنځ** :- (ـــــر+ن+(د)ز)(پ تر،اس،مذ) د تې بي مرض۔

**ـــــ زوبرګے** :- (ـــــز+و+ے+ر+ګے)(پ تر،اس،مذ، ج ـــګي) په ورو ورو فرياد۔

**ـــــ نرے زوبرګے کول** :- ورو ورو فرياد کول۔

**ـــــ شان ټنګ** :- (ـــــشا+ن+ټ+ن+ګ)(پ تر،اس، مذ) نرے شان غږ، يو معمولي شان خبر۔لکه : يو نرے شان ټنګ خو ما هم اورېدلے دے۔

**ـــــ نرے رېشل** :- باريک باريک رېشل۔ مجازاً: خبره اوږدول۔ نرے نرے باد تلل،ويرې اخستل۔

**نرينه** :- (ن+ري+نَ)(پ تر، صف) د ,,نر،، سره تعلق لرونکے،نر ته منسوب۔ نارينه، سړے مجازاً: بهادر، شجاع، مردانه۔

**نريلے** :- (ن+ري+لے)(اس، مذ، ج ـــلي) حوض، تالاؤ، چې اوبهٔ په کښې جمع کېږي۔

**نريه** :-(ن+ر+ي)(صف) وږے، چې څهٔ ئې خوړلي نهٔ وي۔ګرسنه۔

**ـــــ کېدل** :- وږے کېدل۔

**نرے** :- (ن+ر+ے)(اس، مذ، ج ـــــري) د زنانهٔ د تندي دپاسه اودلے شوے وېښتهٔ، بندکي۔

**نره** :- (ن+ر) د ,,نر،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔ د ,,اے نره،، مخفف چې د ندا تورے ترې حذف کړے شوے دے۔

**نره** :- (ن+رَ)(صف، مذ، ج ـــرې/انې) د ,,نر،، تانيث دے۔خو د ,,نر،، په دوېمه معنٰی کښې راځي۔ لکه : فلانۍ ډېره نره ښځه ده۔

**په ـــــ** :- په نرتوب، په توره، بهادرۍ سره۔

**په ـــــ توره ګټل** :- په بهادرۍ سره ګټل، په توره مېړانه ګټل۔

**نړ** :- (ن+ړ)(اس، مذ، ج ـــــونه) جريب، د زمکې د کچ پيمانه، جيرب۔

**نړا** :- (ن+ړا)(اس، صوت) د خر اواز، نارې۔

**ـــــ کول** :- د خر اواز کول۔

**نړانده** :- (ن+ړا+ن+د)(اس،مو،ج ـــــدې) خرابه، ويرانه۔

**ـــــ کول** :- خرابه جوړول، ويرانه جوړول، کنډرې کول۔

**ـــــ کېدل** :- خرابه جوړېدل، ورانېدل، کنډرې کنډرې کېدل۔

**نړګ** :- (ن+ړ+ګ)(اس، مذ، ج ـــونه) خرابه، ويرانه، بيابان، نړانده۔

**ـــــ کول** :- خرابه (ترې) جوړول، ويرانول، بيابان يا نړاندې جوړول۔

**ـــــ کېدل** :- نړانده کېدل، خرابه کېدل، بيابان (ترې) جوړېدل۔

**نړګس** :-(ن+ړ+ګ+س)(وـــــنرګس)۔

**ـــــ زړپ** :- (ـــــز+ړ+پ)(وـــــنرګس)۔

**نړل** :- (ن+ړ+ل)(مص) د خر اواز کول، نړا کول، نارل۔

**نړل** :- (ن+ړ+ل)(مص)(وـــــنارل)۔

**نړول** :- (ن+ړ+ؤ+ل)(مص) د عمارت وغېره د وېخه ورانول، رنګول، راغورزول (د عمارت) د وېخه اېستل۔ د خلقو د يو ځاے نه/ څخه بې دخله کول۔

**نړونه** :- (ن+ړ+ؤ+نَ)(حمص) رنګونه،د وېخه اېستنه، راغورزونه، لهٔ ځايه پورته کونه يا پاسونه۔

**نړۍ** :- (ن+ړ+ۍ)(اس، مو) دنيا، جهان، عالم۔

**ـــــ واله** :- (ـــــوا+لَ)(پ تر،اس،مو،ج ـــلې) د ,, نړۍ وال،تانيث دے۔

**باهرنۍ ـــــ** :- د خپل ملک يا ښهر وغېره نه/ څخه علاوه نوره دنيا، باهرانۍ دنيا

**د ـــــ دوهمه جګړه** :- دوېم عالمګير جنګ۔

**نړېچغ** :- (ن+ړې+چ+غ)(اس، مذ، ج ـــــونه) غلام ګردش، پلوړه۔

**نړېدل** :- (ن+ړې+د+ل)(مص) رنګېدل (د عمارت وغېره) راغورزولے کېدل د وېخه اېستلے کېدل۔ لهٔ ځايه (په زور) پاڅولے کېدل۔ رابېلېدل، د يوې حصې يا برخې راجدا کېدل۔

**نړېدل** :- (ن+ړې+د+ل)(مص) نارم، فرياد کول، کړېدل۔

**نزاع** :-(ن+زا+ع)(ع،اس،مو، ج ـــکانې) جګړه، مخالفت، تکرار، فساد، دښمني، عداوت۔

پاتې شوه د هر چاله مرګه تېره
د دنيـــا دپــاره مه کوه نزاع(خ م ب)

**ـــــ پيدا کېدل** :- جګړه پيدا کېدل،مخالفت پيدا کېدل،په جنګ کېدل۔

**د ـــــ باعث** :- (د ـــبا+ع+ث)۔

**د ـــــ سبب** :- (د ـــس+ب+ب)(پ تر،اس، مذ) د جګړې وجه، د اختلاف سوب

**لفظي ـــــ** :- (ل+ف+ظي ـــ)(ف تر،اس،مذ) د خبرو جګړه،خبرې اړونه۔

**نزاکت** :- (ن+زا+ک+ت)(ع،اس،مذ،ج ـــونه) نازکي، نرے والے، زر ماتېدونکے حالت، باريکي، خوبي، نفاست، ناز و ادا، نازک مزاجي۔ د زنانهٔ په نومونو کښې راځي۔

**د ـــــ خبرې** :- (د ـــــخ+ب+رې) د ناز و ادا خبرې، د معشوقانه انداز خبرې۔

**دوخت ـــــ** :- (د،و+خ+ت ـــ)(پ تر،اس، مذ) د حالاتو نزاکت، د حالاتو اهميت، چې معمولي شان غلطۍ سره به هر څهٔ تباه او برباد شي۔

**نزاله** :- (ن+زا+له)(اس،مو،ج ـــلې)(وـــنواله)۔

**نزاله** :- (ن+زا+لَ)(اس،مو،ج ـــلې) کم عمره، د وخت څخه اګاهو، په وړوکوالي يا هلکوانه کښې۔

**نزاهت** :- (ن+زا+هـ+ت)(ع،اس،مذ) نزهت، پاکوالے، پاکيزګي، د بدۍ نه/ څخه لرې اوسېدنه۔

**نزد** :- (ن+ز+د)(ف،اس،ظر) نزدې، قريب، ورلنډ۔

**په ـــــ** :- (پ ـــــ) په خيال کښې، د خيال يا عقيدې مطابق۔لکه : زما په نزد ستا خبره درسته نهٔ ده۔

**د قانون په ـــــ** :- د قانون مطابق، د قانون د حکم تر لاندې۔

**نزدو** :-(ن+ز+دو)(وـــنزدې)۔

**نزده** :-(ن+ز+د)(فعل) د ,,نهٔ زده،، لنډيز شکل دے۔زده ئې نهٔ دي۔نهٔ ده ورمعلومه۔

**نژدې** :- (ن / نې + ژ + دې) (اس ،ظر) را (ور) لنډ ، قریب ، په خوا کښې.
**ـــــ زمانه** :- (ـــــ ز + ما + نَ) (عپ ت، اس ،مو ، ج ـــــ نې) هغه وخت چې ډېر پخوا نهٔ وي تېر شوے.قریبي زمانه.
**ـــــ کول** :- ورلنډول ، خوا ته کول ، قریب کول.
**ـــــ کېدل** :- ورلنډ کېدل ، خوا ته ورتلل ، قریب کېدل.
**ـــــ لرې** :-

هم نژدې او هم لرې ، په هر ځاے کښې
په عالم زما خبرې خلق کا په نژدې ، مذ ) نژدې والے ، نزدیکي ، قرب ، نزدیکت.

**نزله** :-(ن + ز + لَ) (ف ، اس ، مو ) زکام ، د مشهورې ناروغتیا نوم دے چې په کښې د سترګو او پوزې نه / څخه اوبهٔ بهېږي.
**نزم** :- (ن + ز + م) (اس ، مذ ) نبض ، د لاس هغه رګ چې عموماً د ناروغتیا د معلومولو دپاره ئې حرکات کتے شي. (اصلاً د ,, نبض ،، بدل شکل دے ).
**ـــــ کتل** :- نبض کتل ، د نبض د رفتار او زور وغېره په ذریعه د ناروغتیا حال معلومول.
**نـزول** :-(ن + زو + ل) (ع ،اس ،مـذ ،ج ـــــ ونـه) راکوزېدنـه ، نازلیـدل . وارد کېدل ، د قرآن شریف یعني د وحي زمکې له راتلنه.
**ـــــ کول** :- راکوزېدل ، نازلېدل ، په ښکته راتلل.

دا تازه تازه مضمون به په بیاض کښم
خبـر نـهٔ یم چـې لـه کومه رانزول کا (خوشحال)

**دوحي ـــــ** :- (د ، و + حي ـــــ) (عپ ، تر ، اس ، مذ ) د خداے پاک د طرفه وحي ښکته زمکې ته یا کوم پېغمبر له راتلنه ، د وحي راکوزېدنه.
**نزولي** :- (ن + زو + لي) (عپ ، صف ) ضبط شوې زمکه ، سرکاري زمکه ،د میونسپل کمیټۍ زمکه ، هغه مېدان چې په کښې شاهي لښکرې پړاو کوي. بغېر د اجازت نه / څخه په کوم کور کښې کډه اړول.
**نزے** :- (نُ / نو + زے) (و ـــ نوزے ).
**نزیـل** :- (ن + زي + ل) (ع ،اس ، مـذ ) نـزول کـوونکے ، راکوزېـدونکے ، ښـکته راتلونکے . مېلمه ، پردیسي.
**نزهـت** :-(نُ + ز + هـ + ت) (ع ،اس ،مـذ ) پـاکیزګي ، پـاکوالے ، سُـتره والـے ، تازګي. خوشالي ، خرمي ، عېش او نفساني نشاط.د زنانهٔ په نومونو کښې راځي
**نژاد** :-(ن + ژا + د ) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) اصل ، نسل ، اصل والـه (لاحقه) نورو الفاظو سره راځي.او د نسل معنې ورکوي. لکه : هندي نژاد خلق.
**نژادي** :- (ن +ژا + دي) (ف تر ،صف) نژاد یعني اصل نسل سره تعلق لرونکے ، نژاد ته منسوب.لکه : نژادي فرق.
**نژدو**:- ( ن +ژ+دو ) (و ـــــ نژدو ).
**نژدې** :-(ن + ژ + دې ) (و ـــــ نژدې ).
**ـــــ زمانه** :- (ـــــ ز +ما +نَ) (و ـــ نژدې زمانه ).
**نژدیکي** :- (ن + ژ +دي +کي) (و ـــ نژدیکت ).
**نژدیکت** :- (ن+ ژ + دي+ ک + ت ) (و ـــــ نژدیکت ).
**نژند** :- (ن + ژَ+ ن+ د ) (ف ، صف ، مذ ، مـو ـــــ ه) غمجـن ، غمګین ، خفه، مغموم ، ناراضه ، مرور ، قهرېدلے.ذلیل ، خوار.
**ـــــ کول** :- غمجن کول ، غمګین کول.

سخ دې دا چې سخندان د زمانې شوې
زار دې دا چې دې په فکر زړهٔ نژند کړ (خوشحال)

**نړیږ** :- (ن + ګ / ژې + ر ) (و ـــ نړور ).
**نـړدي** :-(ن +ګ/ژ+دي) (فعـل) د ,, نـهٔ ړدي ،، مخفف دے.نـهٔ کښـېږدي.دغه شان نور فعلونه هم دي یعني نړدے ، نړدئ ،نړدم او نړدو.
**نړل** :- (ن + ګ / ژ + ل ) (مص) انتروشے کول ، انتیوشے کول.
**نړندے** :- (ن + ګ / ژ+ ن + دے ) (اس ،مو ، ج ) د ,, نړور ،، جمع ده.
**نـړور** :-(ن + ګو/ ژو + ر ) (اس ، مـو ، ج ـــ نړینـدې/یانې) د زوئـي ښـځه . (بلـه جمع ئې نړیاندې او نړندې هم ده ).
**نړول** :-(ن + ګ / ژ + و + ل ) (مص ) انتروشے وروستل ، انتیوشے وروستل.
**نړے** :- (ن + ګے / ژے ) (اس،مذ ،ج ـــــ ړې) انتروشے ، انتیوشے.
**ـــــ کول** :- انتیوشے کول، انتروشے کول.
**نړول** :-(ن + ګ/ژ + ؤ + ل ) (مص ) په انتیوشو کول ، انتروشے ور وستل.
**نس** :- (ن + س ) (اس ، ملا ، ج ـــــ ونه ) ګېډه ، خېټه.

نس د ګور و د مور یو دے په معنٰی کښې
خـو پـــه چائې تور لحـد ، په چابازار کا (رحمان بابا)

**ـــــ پړوسے** :- (ـــــ پ + ړو + سے ) (ف تر ،صف ) ډېر خوراک کوونکے.
**ـــــ پړسے** :- (ـــ پ + ړ + سے ) (پ تر ،اس ،مذ ،ج ـــــ سي ) خېټه ور ، هغه چې ډېر زیات خوراک کوي. د ګېډے پړسېدنه ، د ګېډې پړسوب.
**ـــــ تر خولهٔ / خولې ختل** :- ګېډه خولې له راتلل ، مجازاً : ډېر زیات خوراک کول.
**په ـــــ خوړل** :-
**په مارهٔ / موړ ـــــ خوړل** :- په مړه ګېډه خوړل ، ډېر خوراک کول.
**په تش ـــــ** :- (په، ت +ش ـــ ) (پ تر ،تف ) په خالي ګېډه ،په نهره.
**په نیم ـــــ** :- (پ ، نې + م ـــ ) (فپ تر ) په نیمه ګېډه ، د ضرورت نه / څخه کم خوراک.
**د ـــــ موړه** :- (د ـــــ مو + ړ ) (پ تر ، اس ، مو ) پېچش ، اړ.

د صحرا ویلنې خوره هر به ور کېږي
کـه د نس مـوړه وکړې وکړه باور (خوشحال)

**نس خوږتیا** :- (ن + س +خو+ګ/ژ+ ت + یا ) (پ تر ،اس ، مو ) نس خوږے ، د نس خوږېدنه ، د نس درد.
**ـــــ والے** :- (ـــ وا + لے ) (پ تر ،اس ، مذ ) (و ـــ نس خوږتیا ).
**د ـــ خوږ** :- (د ـــــ خو + ګ/ ژ ) (پ تر ،اس ، مـذ ) د ګېډې درد ، پېچش ، نسخوږے.
**نس بهے** :- (ن + س + ب + هے ) (پ تر ،اس ، مـذ ) دستونه لګېدنه ، د دستونو بیماري ، هېضه.
**ـــــ کېدل** :- هېضه کېدل ، دستونه لګېدل.
**نساء** :-(نِ / نې + سا ) (ع ، اس ، مـو ، ج ) ښـځې ، زنانـه (اصـلاً د ,, امرآة ،، جمع ده ) د زنانهٔ د نومونو د برخې په طور استعمالېږي.
**نساب** :-(نَ +س +سا +ب ) (ع ،اس،فا ، مذ ، ج ـــ ان،مو ـــ ه) د نســـبونو ماهر ، هغه سړے چې د خلقو شجرې وریادې وي.د علم الانساب پوهان.
**نساج** :- (ن + س + سا + ج ) (ع،اس،فا ،مذ ، ج ـــ ان ، مـو ـــ ه) جـولا ، ټـوکي اودونکے ، دروغجن ، ده نهٔ خبرې جوړوونکے.
**نساجي** :- (ن + س + سا + جي ) (عف،تر،اس ،مو ) د نساج پېشه ، جولاتوب.
**نساجئ** :- (ن + س + سا + ج + ئ) د ,,نساجي ،، جمع ده . د ,,نساجي ،، بـدل شکل چې د مغیرهٔ د تورو راځي.
**د ـــ صنعت** :- (د ـــ ص + ن + ع + ت ) (عـپ تر ،اس،مذ ) د ټوکو کپـړو جوړولـو کار.
**د ـــ کارخانه** :- (د ـــ کا + ر + خا + نَ ).
**د ـــ فابریکـه** :- (د ـــ فـا + ب +ري + ک ) (اس ،مـو ، ج ـــ نې / کې) د ټوکـو د جوړولو کارخانه ، ټېکسټائل مل.

**نسائي** :- (نِ + سا + ئي) (عف ،تر ،صف) نساء یعني ښځو سره متعلق ، ښځو ته منسوب ، زنانه ، لکه : نسائي مرضونه.

**نسائم** :- (ن +سا+ئې+م) (ع ، اس ، ج) د نسیم جمع ده .نسیمونه ، نرمې نرمې هواګانې ، سپک وربدونکي بادونه.

**نسب** :- (ن + س + ب) (ع ، اس ، مذ ، ج ــونه / انساب) اصل نسل ، نژاد ، خاندان

**ــــ پېژندونکی** :- (ــ پې +ژ/ ژ+ ن + دو+ ن+ کی) (عپ ،تر ،اس فا ،مذ ،ج ــ کي) د نسب علم لرونکی ، نساب.

**شجرهٔ ــ** :- (ش + ج + ر + ئې ـــ) (عف ، تر ، مذ ، ج ــونه) د چا د پلرونو نیکونو د نومونو هغه نقشه چې عموماً د ونې په شکل کښې جوړه شوې وي .په مورث اعلیٰ (د سر نیکهٔ) په کښې جرړې په طور او د هغه د اولاد خېلونه او قبیلې د ونې د ښاخونو ، څانګونو په شکل کښې ښودلې شوي وي. مطلق ، د پلرونو نیکونو د نومونو فهرست.

**ــــ نامه** :- (ــ نا + مَ) (عف ، تر ، اس مو ، ج ــ مې) هغه کاغذ یا شجره چې په کښې د چا پلرونو نیکونو سلسله وار نومونه لیکلي شوي وي.

**نسبت** :- (ن + س + ب +ت) (ع ،اس ،مذ ، ج ــونه) کوم څیز ته منسوب کېدنه ، علاقه ، تعلق ، تړون،ربط ، کوژدن. په حقله ، بابت.

**ــــ کول** :- منسوب کول ، حواله ورکول ، تعلق ښودل.سره سمول ، برابرول.

د یار مخ دلاله ګل سره نسبت کا

د لالــه دیار لــه مخه څهٔ مشال (خوشحال)

**په ــــ** :- په حقله ، سره متعلق.په مناسبت ،په مقابله کښې.

**ــــ ورکول،چا سره** :- چا سره تعلق یا تړون ښودل ، چاته منسوب کول.

**نسبتي** :- (ن + س+ بَ + تي) (عف ،تر ،اس) نسبت لرونکی ،خپل ،خپلوان ، رشته دار ،عزیز.

**نسبتاً** :- (ن+سْ+ب + ت + ن) (ع،تف) په نسبت ،په تعلق ، په مقابله کښې.

**نسبي** :- (نِ + س + بي) (عف،تر،صف) نسب سره تعلق لرونکی ،خانداني.

**نسبي** :- (ن + س + بي) (و ــــ نسبتي).

**نسبیت** :- (ن + س + بي + ي + ت) (عف ،تر،اس ،مذ) د نســـب ســـره متعلق ، نسبي لکه : د نسبیت نظریه.

**نسترن** :- (ن +س + ت + ر + ن) (ف ،اس ،مذ) د مشهور سپین ګل نوم دے . صافي ورته ,,خړچ،، وائي.

ارغوان دي ضمیران سوسن ریحان دي

یــاسمین دي نسترن نــرګس ګلنــار (خوشحال)

(هـــ سیوتي) د نسترن د ګل بوټی.

**نستعلیق** :- (ن + س + ت + (ع) + لي + ق) (ع ،تر،اس،مذ) د خط د یو قسم نوم .اصلاً دا د عربي د نسخ خط کښې د ځینو زیاتوالي او بدلون سره جوړ کړے شوے دے .یعني په نسخ خط کښې تعلیق شوے دے.د اردو کتابونه عموماً په دې خط کښې وي.

**نستوڼی** :- (ن + س + تو + ڼي) (اس،مذ ،ج ـــ ړي) لستوڼی ، استین.

**د ــــ مار** :- (د ــــ ما + ر) (پ ،تر،اس ،مذ ،ج ــ ان) په دوستئ کښې دښمني کوونکی.

**نسته**:- (ن + س + تَ) (فعل) د ,, نشته ،، بدل تلفظ دے.

**نسج** :- (ن + س+ ج) (ع ،اس ، مذ) اودنه ، د ټوکي اودنه ، د جولاکار.

**نسخ** :- (ن + س + خ) (ع ،اس،مذ) د خط مشهور قسم ، قرآن شریف او د عربي نور کتابونه په دغه خط کښې لیکلے کېږي .پښتوهم په دغه خط کښې لیکلے شي . منسوخ کونه ، منسوخي ، تردید ، لرې کونه ، رد کونه.

**نسخوړے** :- (ن +س+خو+ ګړے / ژے) (پ تر ،اس،مذ ،ج ــ ړي) هغه سړے چې په ګېډه کښې ئې درد وي.د پېچش مریض.

**نسخه** :- (نُ + س + خَ) (ع ، اس، مو ، ج ــــ خې/ نسخ) لیکلے شوے څیز ، نوشته. یو کتاب چاپ وي او د لاس لیک. هغه کاغذ چې حکیم پرې د مریض دپاره داروګان لیکلي وي.

**قلمي ــــ** :- (ق + ل + مي ــــ) (عپ ، تر،اس ، مو ج ــ خې) هغه کتاب چې په قلم لیکلے شوے وي.مخطوطه.

**ــــ لیکل** :- د مریض دپاره داروګان په کاغذ لیکل.

**نسر** :- (ن + س + ر) (اس ،مذ) هغه خاشه ماشه چې سېلاب راوړې وي . ګنګڅړے.

**نسر** :- (ن + س + ر) (ع ،اس،مذ ،ج ــــ ونه) ګنجی ، مشهور مردار خور مارغهٔ، ګرګس.

**ــــ واقع** :- (ــــ وا+ ق + ع).

**ــــ چرخ** :- (ــــ چ + ر + خ) (عف ،تر،اس ،مع) سهیلي قطب په لور یو روښانه ستورے دے .دې ستوري سره دوه ستوري نور هم .چې د یوې ګنجي (مارغهٔ) شکل ترې جوړ شي.څکه ورته د اسمان ګنجي وائي. (په انګرېزي کښې ورته Lyra او Harp وائي).

**ــــ طائر** :-(ــــ ئې) طا + ئې + ر) (عف ، تر،اس ، مع)د ستورو یوه مجموعه ده .چې شکل ئې داسې لکه چې ګنجي وي او وزرې خورې کړې په بره الوزي .له دې کبله ورته الوتونکی ګنجي وائي په (انګرېزي کښې وته عقاب Eagle یا Aquila وائي).

**نسوم** :- (ن+سو+م) (فعل) د ,, نهٔ سوم ،، (نه شوم) مخفف دے.

**نسرین**:- (ن + س + ري + ن) (ف ، اس ، مذ) د مشهور ګل نوم دے . پړوارے ، سپین خوشبویه .(هـــ سیوتي)د زنانهٔ په نومونو کښې راځي.

**نسوائے** :- (ن + س + وا + ئے).

**نسوے** :- (ن + س + وے) (فعل) د ,, نهٔ سوائے ،د ,, نهٔ سوے،، ,,نهٔ شوے ،، مخفف دے.

**نسے** :- (ن + سے) (فعل) د ,, نهٔ سے ،، (نهٔ شے) لنډیز شکل دے.

**نسے** :- (ن + سے) (فعل) د ,, تنیسے ،، فعل لنډیز شکل دے.

**نسۍ** :- (ن+س+ۍ) (اس ، مو) سوتلي .نرے پړے ، مزے ، نخۍ.

**نسي** :- (ن + سي) (فعل)د ,, نهٔ سي ،، (نهٔ شي) مخفف دے.

**نسي** :- (ن + سي) (فعل) د ,, نیسي ،، لنډیز شکل دے .چې د نیول یا نیسل مصدر څخه د حال (واحد غایب) فعل دے.

**نسیا** :-(ن + س + یا) (ع ، اس ، مو) قرض ، پور.

**نسیاً منسیاً** :- (ن+س+ي+ن + م+ن + س + ي +ن) (ع ، تر ، صف) بالکل هېر شوے،قطعي فراموش شوے ، له یادو وتے.

**ــــ کېدل** :- ښېخي هېرېدل ، بالکل فراموشه کېدل ، هېر په تېر کېدل ، ښېخي له یادو وتل.

**نسیب** :- (ن + سي + ب) (ع ، صف ،مذ ، مو ــ ه) لوے نسب لرونکی ، عالي نسبه ، اصیل ، شریف.

**نسیج** :-(ن + سي + ج) (ج ، اس ، مف ، مذ ، مو ــ ه) اودلے شوے (جامه).

**نسیم** :-(ن + سي + م) (ف ،اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د سحر هوا ، باد صبا ، د نارینهٔ و په نومونو کښې ددې لفظ تانیثي شکل نسیمه راځي).

**نسیان** :- (ن + س + یا + ن) (ع ،اس، مذ) هېره ، هېرېدنه ، د هېرېدنې عادت ، یو مرض دے چې د بني ادم نه تېر شوي حالات هېر شي.

**نسیه** :- (ن + س/ سي+يَ) (ع ،اس،مو،ج ــ یې) قرض ، پور.

**ـــــ اخیستل** :- پور کول ، قرض اخیستل.

**ـــــ خرڅول** :- په قرض ورکول ، په پور خرڅول.

**نښه** :- (ن + خَ/شَ)[ن+خ+ش/ښ/ا](اس ،مو ،ج ـــ ښې) نشان ، نښان ، علامت ، اثر ، د وادهٔ یو رسم.

**ـــــ کېدل** :- موخه جوړېدل ، نشان جوړېدل ، اماج ګرځېدل.

**په ـــــ کول** :- ښکاره کول ،څرګنده کول .(په) ګوته ښئیل ، په نظر کښې کول.

**په ـــــ کېدل** :- موخه جوړېدل ، هدف جوړېدل ، په نظر کښې راتلل ، د چا ورته مخه کېدل.

**ـــــ ورکول** :- د یادګیرنې دپاره کوم څیز د تحفې په طور ورکول .د پېژندنې دپاره کوم علامتي څیز ورکول.پته ورکول ، درک ورکول.

**ـــــ ویشتل** :- نشان ویشتل ،موخه ویشتل. نشانه بازي کول.

**ـــــ ویشتونکې** :- (ـــ وي +ش + تو + ن + کې)(پ تر ،اس،فا ،مذ ،ج ـــ کي) نشان ویشتونکې ، نښانه باز.

**ـــــ ښانه** :- (ـــ ن +خا/شا + نَ)(پ تر ،اس،مو ،ج ـــ ې ـــ ې) د دواړو لفظونو معنې تقریباً یو شان دي.نښه پته ، نښان او علامت.

**نښې** :- (ن + خ / شې) د نښه جمع ده . د نښه بدل شکل چې د مغېره ؤ تورو سره راځي.

**دناجوړتیاـــــ** :- (د ، نا+ جو+ ړ + ت +یاـــ).

**دناروغتیاـــــ** :- (د ، نا +رو+ غ + ت +یاـــ)(پ تر ،اس ،ج) د بیمارۍ علامې ، هغه علامې چې د کومې بیمارۍ پته ترې لګولے شي.

**نښېځل** :- (ن + خې/شې + (د) ز + ل)(وـــ نښتېځل).

**نسغ** :- (ن + س + غ)(وـــ نسق).

**نسک** :- (ن + س + ک)(ع ،اس،جم) مشهوره غله ، مسور ، د مسورو دال.

**نسکار** :- (ن +س + کا + ر)(اس ،مذ ،ج ـــ ونه) د یو کالي نوم دے.

**نسکور** :- (ن + س + کو + ر)(صف ،مذ ،مو ـــ ه) اړولے ، اپوته ، سر د لاندې واړ کول.

چې په اصل خدا ے نسکور دي پیدا کړے

څـوک بـه څهٔ خوري ددې دهر له ښانکه (رحمان بابا)

**ـــــ کول** :- اړولے کول ، اپوته کول ، برنے مخ ښکته کول.

لـه لـوئي سـرکښۍ زمـا تـوبه ده

خدا ےڅوک مه کړه د اسمان په څېرنسکور (رحمان بابا)

**نسکورول** :- (ن+ س + کو + ر + ؤ + ل)(مص) اړولے کول ،اپوته کول ،اُلټه کول ، پړمخے کول.

**نسکورېدل** :- (ن + س+کو+ رې+د + ل)(مص) اړولے کېدل ، اپوته کېدل ، الټه کېدل ، پړمخې کېدل.

**نسکوره** :- (ن + س + کو + رَ)(اس ، مو، ج ـــ رې) د صدفو نه / څخه جوړې شوې تیې چې عموماً په ګرېوان کښې د ډول دپاره لګولے شي.

**نسکیر** :- (ن +س + کي + ر)(اس ، ظر ، مذ ، مو ـــ ه) نزدې ، قریب ، خواته ، دوست ، خپل خپلوان.

**ـــــ توب** :- (ـــ تو + ب)(پ تر ،اس ، مذ) نزدې والے ، نزدیکت ،دوستي ، رشته داري.

**ـــــ تیا** :- (ـــ ت + یا)(پ تر ،اس ، مو)(وـــ نسکیر توب).

**ـــــ والے** :- (ـــ وا+لے)(وـــ نسکیرتوب).

**نسکیرول** :- (ن +س + کي + ر + ؤ + ل)(مص) نـزدې کـول ، خواتـه کـول ، دوست کول ، خپلولې جوړول.

**نسکیرېدل** :- (ن + س + کي + رې + د + ل)(مص) نزدې کېدل ، ورلنډېدل ، قریب کېدل ، دوست جوړېدل ، خپلېدل.

**نسکینه** :- (ن + س + کي + نَ)(پ تر ،صف) نسکوته منسوب .د نسکو نه جوړ شوے ، د مسورو نه جوړه شوې ډوډۍ ، د نسکو یا د مسورو ډوډۍ.

**ـــــ تیکله** :- (ـــ تې + ک + لَ)(پ تر ،اس،مو ، ج ـــ لې) د مسورو د اوړو نه / څخه جوړه شوې ډوډۍ.

**نسګیر** :- (ن + س + ګي + ر)(اس،مذ ،مو ـــ ه) هغه کس چې په ګېډه کښې ئې درد وي.د پېچش مریض.

**نسګیري** :- (ن + س + ګي + ري)(پ تر ،اس ، مو) پېچش ، د ګېډې خوږ یا درد.

**نسلاً** :- (ن + س + ل + ن)(ع ، اس، تف) د نسل له لحاظه ، د پلرونو نیکونو د لحاظه.

**ـــــ بالنسل** :- (ـــ ب + نْ + نَ + س + ل)(ع ، تر، تف) د یو نسل نه / څخه بل نسل ته راتلونکے (څیز وغېره) هغه څیز ، خبره عادت وغېره چې د پلرونو نیکونو څخه را روانوي.

**ـــ بعد نسلٍ** :- (ـــ ب+ ع + د+ ن + س + لٍ+ نٍ)(وـــ نسل با لنسل) د یو نسل نه بل نسل ته راتلونکے څیز دود دستور ، روایت وغېره . د پلار نه / څخه زوئي د د زوئي نه دهغهٔ زوئي او دغه شان د نیکونو څخه نمسو کړوسو او بیاد هغوي نمسو کړوسو ته راتلونکے کار وغېره.

**نسم** :- (ن + س+م)(فعل) د ,, نهٔ سم ،، یا ,, نهٔ شم ،، مخفف دے.

**نسم** :- (ن + س +م)(فعل) د ,,نیسم ،، مخفف دے .چې د نیول مصدر څخه د حال (واحد متکلم) فعل دے.

**نسو** :- (ن + سو)(پ تر ، صف) لوے نس واله ، خېټو ، ډېر خوراک کوونکے .

**نسو** :- (ن + سُو)(فعل) د ,, نیسو ،، مخفف شکل دے .چې د نیول یا نیسل مصدرِ څخه د حال (جمع متکلم) فعل دے.

**نسو** :- (ن + سو).

**نشو** :- (ن + شو)(فعل) د ,, نهٔ سو ،، یا د ,, نهٔ شو ،، مخفف شکل.

**نسور** :- ن + س + ؤ + ر)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) نسور ، نسواند ، خېټو ، ګېډه ور.

**نسوار** :- (ن + س + وا + ر)(اس،جم) دتمباکو ډانډو اوړهٔ کړے شکل .چې دنشې دپاره په خولهٔ کښې کېښېنودے شي.یا په پوزه راښکلے شي. ناس پلاس. ډېر لږ مقدار ، لکه دا خو زما نسور هم نهٔ دي.

**ـــــ اخیستل** :- په خولهٔ کښې نسوار اچول. نسوار په پوزه راښکل.

**ـــــ د شوې** :- شوه دمردان په ضلع کښې یو کلے دے چې نسوار ئې ډېر مشهور وو .اعلیٰ نسوار.

**ـــــ کول** :- د نسوارو نشه کول ، په خولهٔ کښې نسوار اچول.

**دخیشکوـــــ** :- (د ، خې + ش + کو) خوېشکې په خبېر پښتونخوا کښې یو لوے کلے دے .ددغې ځا ے په نسوارو کښې دا خاصیت وو .چې نشه به ئې په اخره کښې زیاتېدله . مجازاً : داسې معامله یاکار چې په اخره کښې ئې زور یا سختي محسوسه شي.

متل دے چې دخیشکو نسوار په اخره کښې زور کوي.

**ـــــ داني** :- (ـــ دا + ن + ی)(فپ ، تر ، اس ، مو) هغه لوے چې نسوار په کښې کېښېنودے شي.د نسوارو ډبلے.

**ـــــ واله** :- (ـــ وا+ لَ)(پ تر ،اس ، مذ) هغه سړے چې نسوار جوړوي.یا خرڅوي.نسواري.

**نسوارو** :- (ن + س + وا + رو) د نسوارو (جمع) بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**د ـــــ چونډۍ** :- (د ـــ چو+ن +ډ+ ی)(پ تر ،اس، مو) لږ شان نسوار ، د

نسوار دومره مقدار چې په يووخت په خولهٔ کښې اچولے شي ۔(دا مقدار عموماً د کتېې ګوتې او د مسواکې ګوتې په مېنځ کښې د چونډۍ په شکل کښې راخيستے شي)۔

**د ـــ ډبلے / ډبلے** :- (د ـــ د/ډ +ب+لے)(پ تر،اس،مذ ،ج ـــ لي) هغه وړوکے شان ډبلے چې په کښې نسوار کېښېښودے شي او په جېب کښې ګرځولے شي۔(عموماً شيشه هم په کښې لګېدلې وي)۔

**نسوارېه** :- (ن + س + وا + ر + ېه)(پ تر،اس ،مو، ج ـــ ړې) د ,, نسواري ،، تانيث دے۔هغه ښځه چې د نسوارو نشه کوي۔

**نسـواري** :- (ن + س + وا + ري)(پ تر،اس،مذ ،ج ـــ ان) هغه سړے چې دنسوارو نشه کوي نسوار خرڅوونکے۔ د نسوار په شان رنګ۔

**نسوان** :- (ن + س + وا + ن)(ع ،اس ،مو) ښځې ، زنانه۔

**نسـواند** :- (ن + س + وا+ ن + د)(پ تر، صف ،مذ ،مو ـــ ه) خېټو، ډېر خوراک کوونکے ، پُرخور ۔

**نسواني** :- (ن + س + وا + ني)(عف ،تر،صف) هغه کار يا خبره چې ښځو سره تعلق لري۔ښځو ته منسوب۔زنانه۔

**نسوړي** :- (ن + س + و + ړي) د ,, نستـورے ،، جمع ده ۔ د ,,نستوړے ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**نسناسـته** :- (ن + س+ نـا + س + تَ)(پ، تر،اس،مـو ،ج ـــ تـې) دسـتونه ، اسهال،دستونه راتلنه۔په دستونو کښېناستنه ۔

**نشـات** :-(ن +ش +ا + ت)(ع،اس،مـذ ) پېداوښت ، د بوټي لـه زمکې نېغ ټوکېدنه۔ عالم ، مخلوق۔

**ـــ ثانيه** :- (ـــ(ت) + ثا+ ني + يَ)(ع ،تر،اس ،مو) دوېم يا نوے ژوندون ، د کوم څيز يا کار دوباره ترقي کونه۔

**نشأتېن** :- (ن + ش + أ + تې + ن)(ع ،اس ، تثنيه) دوه نشاته ، دواړه جهانونه ، يعني دا دنيا او اخرت۔

**نشاسـته ئـي** :- (ن + شا + س + ت + ئ)(ف تر،صف) نشاستے سره تعلق لرونکے ، نشاسته لرونکے ۔

**نشـاط** :- (ن + شا + ط) خوشحالي ، مسرت ، خوند ،د زنانه ؤپه نومونو کښې هم راځي۔

**ـــ افـزا** :- (ا + ف + زا)(عـف ،تر،صـف) نشـاط زيـاتوونکے ، مسـرت زياتوونکے ، خوښي زياتوونکے ۔

**ـــ اور** :- (ـــ ا + و + ر)۔

**ـــ انګېـز** :- (ـــ ا + ن + ګـې + ز)(ف تر،صـف،مذ ،مو ـــ ه) نشـاط پېداکوونکے ، خوشي اوخوشحالي پېداکوونکے ۔

**ـــ پرسـت** :- (ـــ پ + ر + س+ت)(عـف ،تر،صـف ،مـذ ،مو ـــ ه) عـېش کوونکے ، عېش و عشرت خوښوونکے ۔

**ـــ موندل** :- خوشحالي موندل ،مسرت حاصلول ،خوند موندل۔

طمع مه کړه په دنيا کښې دنشاط

بيا به نهٔ مومې نشاط په دا بساط (رحمان بابا)

**نشـان** :- (ن + شا+ ن)(اس، مـذ ، ج ـــ ونـه / ات) نخښـه ، نښـان ، علامت ، جنډه ، بېرغ ، هدف ، ښښه ، موخه ،تمغه ، چاپ ،خاپ ۔

**ـــ بـردار** :- (ـــ ب + ر + دا+ ر)(ف تر،اس ،مـذ ،ج ـــ ان ،مـو ـــ ه) نشـان پورتـه کوونکے ، د لښکر جنډه وړونکے۔

**ـــ پورته کول** :- د لښکر جنډه پورته کول۔

**ـــ دهي** :- (ـــ د+هي)(ف تر،اس، مو ) نشان ښودنه ، نخښه پته ښودنه۔

**ـــ لګه ؤل** :- فوځي بېرغ ودرول ، فوجي جنډه لګول ، فتح کول۔

چې اول ئې خپل نشاط په غونډي لګ کړ

پـه رحـمت د اهو خپـلو دو نـاکام (خوشحال)

**ـــ ورکول** :- د لښکر جنډه ورکول۔ نخښه پته ښودل۔

**نوم ـــ** :- (نو + م ـــ)(فپ ، تر،اس) نوم او پته ، نوم او نخښه ، پته۔

**نوم ـــ ورکول** :- بېخي ورکول ، معدوم کول ، داسې ورکول، چې نهٔ ئې نوم پاتې شي اونهٔ ئې نوره څهٔ نخښه پته۔

**نشان زن** :- (ن + شا + ن + ز + ن)(ف،تر،اس،مذ ،ج ـــ ان) نخښـه ويشـتونکے ، نشانه باز ، موخه ويشتونکے ۔

**نشـانه** :- (نِ + شـا + نَ) (ف ،اس ،مـو، ج ـــ نې) نخشـه ، نخښـه ، موخـه ، د نخښې د ويشتلو ځاے ، هدف۔

**نشـاني** :- (ن+شـا + نـي)(ف تر،اس، مـو) نخښـه ،هغـه څيـز چـې د تحفـې د يادګار په طور ورکړے شي۔ د کاغـذ ټکړه يا ډکے وغېره چې پـه کتـاب کښې کښېښودے شي۔

**نشـت** :- (ن/نِ / نـي + ش+ ت)(اس) فارسـۍ د ,, نيسـت ،، بـدل شـکل دے ۔ نشته ، يعني موجود نهٔ دے يا وجود نهٔ لـري ۔ نـيش ، عموماً د کـوم څيـز د عـدم وجـود يـا د نيسـتۍ او تنګدسـتۍ پـه معنـې کښـې استعمالېږي ۔ لکه: هغه په نشت (يا نيش) حساب دے۔

**نشـتر** :- (نِ / نـي + ش + ت + ر)(ف ،اس،مـذ ،ج ـــ ونـه) هغـه اوزار چـې حکيمان (يا ډاکټران) پرې زخم يا ننکۍ وغېره شلوي۔د اپرېشن اوزار۔

**ـــ زن**:- (ـــ ز + ن)(ف تر ، اس ، مذ ) شتر وهونکے ، حکيم ،جراح ، چې زخمونه وغېره په نشتر سره شلوي۔فصاد ۔

**په ـــ وهل** :- نکۍ يا زخم د نشتر په ذريعه شلول يا پرې کول ، چې ګنده مواد ترې راوبهېږي۔

**نشتمن** :- ن /نِ + ش + ت + م +ن)(پ تر،صف ،مذ ،مو ـــ ه) نيست من ، هغه چې هېڅ نهٔ لري۔خوار ، عاجز ، مفلس۔

**نشتمني** :- (ن/ نِ + ش + ت + م + ني)(تر،اس،مو ) يستي ، خواري ، غريبي۔

**نشتوالے** :- (ن / نِ + ش + ت + وا +لے)(پ تر،اس ،مذ) نېستي ، هېڅ نهٔ لرنه ، خواري ، غريبي ،مفلسي۔

**نشـتوکے** :- (ن + ش + تـو + کے)(پ تـر،س ،مـذ ،ج ـــ کـي) شـوم ، کنجـوس ، ممسک۔

**نشتوکۍ** :- (ن+ش+تو+ک+ۍ)(پ تر،اس،مو ) د ,, نشتوکے ،، تانيث دے۔

**نشتول** :- (ن/ ني + ش + ت + ؤ + ل)(مص) نېست کول ، نېش کول ، ورکول ، معدوم کول۔

**نشته** :- (ن/ ني + ش + تَ)(فعل) د ,, نهٔ شته ،، لنډيز شکل دے۔ لکه: فلانے په کور کښې نشته۔

**ـــ والے** :- (ـــ وا +لے)(و ـــ نشتوالے)۔

**نشتېدل** :- (ن/ني + ش + تې + د + ل)(مص) نشته کېدل ،نيش کېدل ، نيست کېدل ، معدومه کېدل ، ورکېدل۔

**نشر** :- (ن + ش + ر)(ع،اس ) خورېدنه ، خپرېدنه ، پراګنده کېدنه، اشاعت۔

**ـــ کول** :- خورول،خپرول ، پراګنده کول ، براډکاسټ کول۔

**ـــ کېدل** :- خورېدل ،خپرېدل ، پراګنده کېدل ، براډکاسټ کېدل ، په رېډيو خورېدل ۔

**ـــ الصوت**:- (ـــ (ر+ص) صو+ ت)(ع،تر،اس) د اواز خورونه ، رږغ خپرونه

**حشر ـــ** :- (ح + ش + ر ـــ)(ع ،ت، اس ، مذ ) راجمع کېدنه او خورېدونه ، د قيامت ورځ ، افري تفري ، بې نظمي۔

**نشراتي** :- (ن + ش + را + تي)(عپ تر، صف) ,, نشر ،، سره تعلق لرونکے ، د خورولو سره متعلق ، خورولو ته منسوب ، نشرياتي۔

**ـــ سټېشن** :- (ـــ س + ټې + ش + ن)(و ـــ نشرياتي سټېشن)۔

**نشرت** :- (ن + ش + ر + ت)(عپ،تر،اس،مذ ) نشر کونه، خپرونه ، خورونه۔

**نشرول** :- ( ن + ش + ر + ؤ + ل )( مص )( و ـــــ نشر کول ) ـ

**نشريات** :- ( ن + ش + ر + يا + ت )( ع،اس،ج ) نشرکېدنې،خورېدنې ،د رېډيو يا لاسلکي په ذريعه د اواز خورونې براډکاسټنګ ـ

**دراډيو ــــ** :- ( د ، را + د + يو ــــــ ) ـ

**درېډيو ــــ** :- ( د ، رې + ډ + يو ــــ )( انګ پ تر ، اس ، جمع ) هغه اوازونه موسيقي وغېره چې د رېډيو په ذريعه خورولې شي ـ د رېډيو خورونې ـ

**نشرياتو**:- ( ن + ش + ر + يا + تو ) د ,, نشريات ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ

**د ـــ سټېشن** :- ( د ـــ س + ټې + ش + ن ) ـ

**د ـــ ټېشن** :- ( د ـــ ټې + ش +ن )( عپ،تر،اس ،مذ ،ج ـــ ونه ) رېډيو سټېشن ـ

**نشرونه** :- ( ن + ش + ر + ؤ + نَ )( حمص ) خورونه ، خپرونه ـ

**نشره** :-( ن + ش + ر ) د عربي د ,, نشرح ،، بدل شکل دے ـ ( و ـــ نشرح ) ـ

**نشره** :-( نُ / نش + رَ )( ع،اس ،مو ) تعويذ ،د قرآن مجيد د ختمولو کوښښ ـ

**الم ـــ کول** :- ( و ـــ الم نشرح کول ) ـ

**نشريه** :- ( ن+ش+ري+يَ )( ع،اس،مو،ج ـــ ات ) هغه ځيز ( اواز ،موسيقي، تقرير وغېره ) چې د رېډيو په ذريعه خورولې شي ـ

**نشرېدل** :- ( ن + ش + رې + د + ل )( و ـــ نشر کېدل ) ـ

**نشست** :- ( ن + ش + س + ت )( ف ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه ) ناسته ، کښېناسته ـ کرسي ، د ناستي ځاے ، سيټ موزونيت ، درست ځاے کېدنه ، د جلسې، غونډې وغېره يو ځل اجتماع ـ

**ـــ و برخاست** :- ( ـــ تو + ب +ر + خا +س+ت )( ف،تر،اس،مذ ) ناسته پاسته ، هم صحبتي ، تعلق ،دوستي ،هم مجلسي ، د مجلس اداب يا طور طريقې ـ

**ـــ و برخاست کول، چا سره** :- د چا سره کښېناستل پاسېدل ، تعلق ساتل ، د چا په مجلس کښې پاتې کېدل ـ

**نشاشته** :- ( ن + شا + ش + س + تَ )( اس،مو،ج ـــ تې ) د غنمو ست ، د غنمو د خوشتولو نه پس چې غنم وپړسېږي ـ نو زور ورکولو سره ترې مغز ويستے شي ـ دا نشاشته ( يا نشاسته ) بللے شي ـ د حلوا په طور پخه ولے هم شي او د جامو د بت دپاره هم پکارولې شي ـ

**نشايسته** :- ( ن + شا + ي + س + تَ )( و ـــ نشاسته ) ـ

**نشکو** :- ( ن + ش + کو ) د شک بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي

**د ـــ دال** :- ( و ـــ د نسکو دال ) ـ

**نشم** :- ( ن+ ش + م )( اس ،مذ ) چالاکي ، مکاري ، عياري ـ

**ـــ کول** :- چالاکي کول ، عياري کول ـ

**نشم** :- ( ن + ش + م )( اس،مذ ،ج ـــ ونه ) ادا ،مکېځ ، مکېز ـ

**نشمه** :- ( ن + ش +مَ )( اس ،مو،ج ـــ مې ) کېځ مکېځ ، ناز ، ادا ، کرشمه ـ

**نشمي** :- ( ن + ش + مي )( اس،فا،مذ،ج ـــ ان ) نشم کوونکے ، ناز ادا کوونکے

**نشمو** :- ( ن+ ش + مو ) د ,, نشمونو ،، بدل شکل دے ـ ( و ـــ په نشمونو تلل ) ـ

**په ـــ تلل** :- په ناز نخرو تلل ، په مکېزونو تګ کول ـ

**نشمېدل** :- ( ن + ش + مې + د + ل )( مص ) ناز ادا کول ، کېځ مکېځ کول ، کرشمې کول ـ

**نشو** :- ( نُ/نَ + شو )( ف،صف ) هوار ،مهين ،ساده،صفاخوياند ،خويوونکے ـ

**نشو** :- ( ن + شَ +و )( ع ، اس، مو ) وده کونه ، باليدګي ، تۀکېدل ، پيدا کېدل ( عموماً ,, نما ،، سره يو ځاے راځي ) ـ

**نشو** :- ( ن + ش+ و )( ع ، اس ، مذ ) وده ، لوئېدنه ، ترقي ـ

**ـــــ و نما ورکول** :- وده ورکول ، لويول ، ترقي ورکول ـ

**نشو** :- ( ن + شو )( فعل ) د ,, نۀ شو ،، لنډيز شکل دے ـ

**ـــ و نما** :- ( ـــ ( وو )+( ن +ما )( ع ،تر،اس ،مو ) وده ،لوئېدنه ، ترقي ـ

**ـــ و نما موندل** :- وده کول ،لوئېدل ، ترقي کول ـ

**نشـور** :- ( نُ + شـو +ر )( ع ،اس ، مـذ ) ژونـدے کېدنـه ، د قيامـت پـه ورځ پاسېدنه ، د مړو ژوندي کېدنه ـ

**يوم ـــ** :- ( يو + مِ ـــ )( عف ،تر،اس ،مذ ) د ژوندي کېدلو ورځ ، د قيامت ورځ

**نشوم** :-( ن + شو + م )( فعل ) د ,, نۀ شوم ،، لنډيز شکل دے ـ

**نشـوي** :- ( ن + ش + وي )( فپ ،تر،صف ) نشې سره تعلق لرونکے،نشې تـه منسوب،نشه راوستونکے ، نشه آور ـ

**ـــ مواد** :- ( ـــــ م + وا+ د )( فپ ، تر،اس ،مذ ،ج ـــ ونه ) هغه ځيزيا ځيزونه کوم چې نشه پيدا کوي ـ نشه آور ځيزونه ـ

**نشه** :- ( ن + شَ )( اس ،مو،ج ـــ نشې ) مستي ، سرور ، هغه حالت چې د شرابو وغېره نشه آور ځيز په ځښکلو يا خوړو سره پيدا کېږي ـ مجازاً : کبر ، لوئي ، غرور ـ

**ـــ په ګاډي کښې نه ځايي دل** :- ډېره زياته لوئي کول ،غرور کول ـ

**ـــــ وړے** :- ( ـــــ و + ړے )( پ تر ، صف ، اس ، ج ـــ ړي ) نشه شوے ، د نشې په حالت کښې بې سُده ، بېهوشه ـ

**په ـــ کښې** :- ( پ ـــ کې )( پ تر،صف ) د نشې په حالت ، مدهوشه ، بې سده ـ

**ـــ کول** :- په نشه کښې کول ، نشه راوستل ، مدهوشه کول ( خج په ,, کول ،، دے )

**په سر کښې ـــ لرل** :- کبرجني کول ، غرور کول ، کبر لرل ـ

**ـــ وباسل، د چا د سر نه / ځخه** :- د غرور يا د لوئي سزا ورکول ، يا د هغې ځيز نه / ځخه محرومه کول د کوم په وجه چې ځوک کبر کوي ـ

**ـــ اور** :- ( ـــــ آ + و + ر )( ف تر،صف،مذ ،مو ـــ ه ) نشه راوستونکے ، نشه کوونکے ، نشه ئيز ـ

**ـــ آلوزول، د سر نه / ځخه** :- ( و ـــ نشه اوباسل د سر نه ) ـ

**ـــ ايز** :- ( ـــــ اي + ز )( و ـــ نشه آور ) ـ

**ـــــ راوستونکې** :- ( ـــ را+و+ س + تو + ن + کے )( پ تر،اس،فا،ج ـــ کي ) نشه آور ، نشه ائيز ـ

**ـــ ايز مشروبات** :- ( ـــ م + ش + رو+ با+ت )( عپ ،تر،اس،ج ) د ځښکلو هغه ځيزونه چې نشه راولي ـ ( لکه شراب ، بنګ وغېره ) ـ

**ـــ باز** :- ( با+ ز )( ف تر،اس، صف، مذ ،ج ـــ ان ) نشه کوونکے ، نشه ئي ـ

**ـــ بازي** :- ( ـــــ با + زي )( ف تر ، اس ،مو ) نشه کونه ، نشه راوستونکي ځيز خوړنه يا ځښنه ـ

**ـــ بندي** :- ( ـــ ب + ن + دي )( ف تر ، اس ، مو ) په نشه بندېز ، د نشې ممانعت

**ـــ خرابول** :- د چا د نشې په وخت يا حالت کښې دخل ورکول ـ

**ـــ خور** :- ( ـــــ خو + ر )( ف تر،اس ، مذ ) نشه آور ځيز خوړونکے يا ځښکونکے نشه ئي ، نشه باز ـ

**ـــــ خوري** :-( ـــــ خو + ري )( ف تر ، اس ، مو ) نشه بازي ، نشه کونه ـ

**نشئ** :- ( ن + ش + ئ )( فعل ) د ,, نۀ شئ ،، لنډيز شکل دے ـ ( خج په ,, نَ ،، باندې دے ) ـ

**نشه ئي** :- ( ن + ش + ئي )( ف تر، صف ) نشه کوونکے ، د نشې عادي ، نشه راوستونکے ،نشه آور ،نشې ته منسوب ، نشې سره تعلق لرونکے ـ

**نشي** :- ( ن + شي )( فعل ) د ,, نۀ شي ،، لنډيز شکل دے ـ

**نشې** :-( ن + شې )( فعل ) د ,, نۀ شې ،، لنډيز شکل دے ـ ( خج په ,, نَ ،، باندې دے )

**نشې** :- (ن + شې) (اس ، ج) د ,,نشه،، جمع ده.د ,,نشه،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي. (خج په ,,شې،، باندې دے).

**ـــــدار** :- (ـــــدا + ر) (فپ ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــــه) نشه لرونکے ،نشې واله ، نشه ائيز ، کبر جن ، مغروره.

**نشېب** :- (ن + شې + ب) (ف ،اس ،مذ ،ج ـــونه) ښکته طرف ، زوېږ ، ژوره ، جوره ، ښکته والے.

**ـــــو فراز** :- (ـــ(بو) ف + را + ز) (ف تر ،اس، مذ) لوړ والے او جور / ژوروالے ، لوړه ، ژوره.مختلف قسم حالات ، ښۀ حالات او خراب حالات ، سختي او نرمي،فائده او نقصان.

**نشېبي** :- (ن + شې + بي) (ف تر ، صف) ژور طرف ته ، جور والي ته ، ښکته طرف ته ، جوره / ژوره.

**نښان** :-(ن + خا/شا + ن) (اس ،مذ ،ج ـــــونه) نشان ، نخشه ، نخښه ، علامت ، جنډه ، بيرغ ،هدف ، ګل زيږئ.

**ـــــ اوچتول** :-

**ـــــ خېژول/ خېجول** :- جنډه پورته کول ، علم د بانس وغېره بره سر ته ورخېژول

**ـــــ ورکول** :- جنډه ورکول ، علم ورکول ، نخشه/ نخښه ورکول ، نشان ورکول.

**ـــــ ويښتل** :- **نخشه** / نخښه ويشتل ، موخه ويشتل،نشان بازي کول.

**د ستوري او سپوږمۍ ـــــ** :- (پ تر ،اس) د پاکستان رسمي نښان ، چې زمکه ئې شنه وي .څۀ برخه ئې سپينه وي او د ستوري او مياشت علامت پرې جوړ شوے وي.

**نښــانچي** :- (ن + خا/ښـا+ن + چــي) (فپ،تر،اس،مـذ ، ج ـــان) نخښـه ويشتونکے ، نشانه باز.

**نښانه** :- (ن + خا/شا + نَ) (اس مو، ج ـــنې) د ,,نښان،، تانيثي شکل دے.

**ـــــ ويشتل** :- نخښه ويشتل ، موخه ويشتل ، نشانه بازي کول.

**نښانه** :- ګل جړي ، هدف.

د ښـــو پـه ناوکيو د غلېبل کړ\
نښانه مې درته ځان دے لکه وو (خوشحال)

**ـــــ بازي** :- (ـــبا + زي) (فپ ،تر،اس ،مو) نخښه ويشتنه ، موخه ويشتنه.

**نښنائي** :- (ن + خا / شا + ئي) (فعل) د ,, نۀ ښنائي ،، لنډيز شکل دے .پکار نۀ دي.مناسب نۀ دي.

**نښت** :- (ن + خ/ ش + ت) (و ـــ نښته).

**نښته** :- (ن +خ/ ش + تَ) (حمص) نښتنه ، چسپان کېدنه ـجنګ جګړه ، بحث مباحثه.

**نښتيا** :- (ن + خ/ش + ت + يا) (و ــــ نښته).

**نښتر** :- (ن + خ /ش + ت + ر) (اس ،مذ ، جـــونه / ان) مشهوره غرئيزه ونه ، ديو دار چې لرګے ئې د ابادۍ دپاره ډېر غوره وي.

**نښـتل** :-(ن + خ/ش + ت + ل) (مـص) چسپان کېـدل ، منښـتل ـجګړه کـول، جنګ کول.بحث کول ، حجت بازي کول. بانډه کېدل ،زوړنډېدل. اړې کېـدل ، لاړ نــۀ مونـدل ، د خبـرې يـا سـوال نـۀ مونـدل ـراګېرېـدل، ارحيصـارېدل ، شورو (شروع) کېدل ـ لکه: جګړه ،نښـته ـچاسره تړل کېدل،چا پورې ځان تړل ،په کارکښې مصروف ,, بودل،، .

**چاپورې ـــــ** :- چا سره ځان تړل ، چا سره تړل کېدل ، په کوم يا مقصد کښې اصرار کول.

**چا سره ـــــ** :- جنګ کول ، جګړه کول. بحث کول ، حجت بازي کول. چا پورې نښتل.

**ژبه / جبه ـــ** :- (ج/ ژ +بَـــ) ژبه / جبه ترټرې کېدل ، ترټرے کېدل.

**نښتنه** :- (ن + خ/ش+ ت + نَ) (حمص) (و ـــ نښته).

**نښتوب** :- (ن + خ /ش + تو + ب) (پ تر ،اس ،مذ ،ج ـــونه) زوېږ ، نشېب.

**نښتون** :- (ن + خ/ش + تو + ن) (و ـــــ نښته).

**نښـتے** :- (ن + خ/ش + تـے) (اس،مف،مـذ ،ج ـــتـي) چشپان شـوے ـ بانډه شوے ، اړشوے ، په جنګ ، جګړه يا بحث يا کار کښې بوخت.

**په ـــــ ژبه** :- (پ ـــ ژبه / جبه) (پ تر ،تف) په ترټرې ژبه / جبه.

**نښتيا** :- (ن + خ /ش + ت + يا) (و ـــ نښته).

**نښتيځ** :- د عربي د ,,شد،، په معنا .دريم مد ضروري وي. په دغه حرف باندې نښتيځ وي لکه دابه ضالين جام .(مخزن).

**نښتېځل** :- (ن + خ/ش + تې + (د) ز + ل) (مص) نچوړول ، نچوړي کول.

**نښتېځلے** :- (ن + خ/ش + تے + (د)ز+ لے) (اس،مف،مذ ، جـــلي) نچوړ شـوے ، نچوړي شوے.فشرده ، مجازاً : ډېر دباؤ شوے.د دباؤ يا بوج تر لاندې په تکليف کښې فرياد کوونکے.

خشک صورت زيړه څېره نيم نښتېځلے\
د عشق رنځ سورا دوڅاره لکه طوعون (پير محمد)

**نښتېځه** :- ن + خ/ش + تې + (د) ز) (حمص) (و ـــ نښتېځنه).

**نښتېځنه** :- (ن +خ/ش + تې + (د) ز + نَ) (حمص) نچوړ کېدنه ، نچوړي کېدنه ، د نچوړولو عمل،فشردګي ،نچوړونه.

**نښتېزل** :- (ن + خ / ش + تې + ز + ل) (و ـــ نښتېځل).

**نښخه** :- (ن + خ/ش + خَ) (و ـــ نخښه).

**نښـل** :- (ن + خ / ش + ل) (مـص) د ,,نښـتل،، سره جوړئ مصدر ،چې ځينې فعلونه ترې جوړولے شي.لکه : نښلي.

**نښـلول** :- (ن + خ / ش + ل + ؤ + ل) (مص) چسپان کول ، منښـل ، ملاوؤل ، په جنګ جګړه وروستل.په کار کښې مصروف کول. نوکر کول.حيصارول ، لاره وربندول.په بحث کښې يستل.

**نښلبند** :- (ن + خ/ش + ل + ب + ن + د) (و ـــ نخلبند).

**نښـلونه** :- (ن + خ /ش + ل + و + نَ) (حمص) چسپان کونه ، سره ملاوؤنه ـ په جنګ جګړه وروستنه. په بحث کښې يستنه.

**نښلېدل** :- (ن + خ/ش + لې + د + ل) (مص) (و ـــ نښتل).

**نصاب** :- (ن +صا + ب) (ع ،اس ،مذ ،ج ـــــونه) هغه کتابونه چې د درس د يوې درجې دپاره مقرر وي.کورس ، هغه سرمايه (مال وغېره) چې زکات پرې واجب وي. جاج ،تول ،اندازه ،جړه ، جرړه ، بنياد.

**تعليمي ـــــ** :- (ت+(ع)+ لي + مي ـــ) (عپ ،تر،اس ،مذ ،ج ـــونه) د زده کړې دپاره مقرر شوي کتابونه تعليمي کورس.

**نصابي** :- (ن + صا + بي) (عپ،تر ،صف) نصاب سره تعلق لرونکے ، نصاب ته منسوب ، لکه : نصابي کتابونه.

**نصـــاريٰ** :- (ن + صـا + را) (ع ، اس ، ج) د نصـراني جمـع ده ـعيسـائي ، مسيحي.

**نصـائح** :-(ن + صـا + ئـي + ح) (ع اس ،ج) د نصـيحت جمـع ده ـنصـيحتونه ، پندونه.

**نصب** :- (ن + ص + ب) (ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه / انصاب) نېغ ودرول ، لګول ، قائمول ،زور ، زبر ،د زورعلامه (ـــَ).

**ـــــ کول** :- نېغ ودرول ، لګول ، په ځاے کلکول.

**ـــــ العين** :- (ـــ (ب + ل) عې + ن) (ع ، تر ، مذ) په کوم ځاے چې نظر ورښخ شـوے وي ـمجازاً : د زړۀ مراد يا مقصد ـهغه منزل ، چې څوک ورتـه رسېدل غواړي.

**نصبول** :- (ن + ص + ب + ؤ + ل) (مص) (و ـــ نصب کول).

**نصبي** :- (ن+ص+بي) نصب سره تعلق لرونکے ،نصب ته منسوب۔

**نصبېدل** :- (ن+ص+بې+د+ل)(مص) نېغ ښـخېدل ، لګېدل،نېغ ودرېدل ، قائم کېدل۔

**نصـر** :- (ن+ص+ر)(ع ، اس،مـذ ،ج ــونـه) امداد ،مرسـتـه ، مـدد ، لاس ، برے ، فتح ، ظفر۔

**نصرا** :-(نُ+صَ+را)(ع ،اس ،ج) د ,,نصير ،، جمع ده۔

**نصـراني** :- (ن+ص+را+نـي)(ع ، اس ، مصـف، مـذ ، ج ـــان /نصـارىٰ) عیسائي ، مسیحي، د عیسائیانو یوه فرقه۔

**نصـرانیت** :- (ن+ص+را+نـي+يَ+ت)(ع ،تر،اس،مـذ) عیسـائیت ، مسیحیت۔

**نصرت** :- (نُ+ص+ر+ت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــونه) امداد مرسته ، مدد ، لاس (کوٌنه) د زنانه ؤ په نومونو کښې راځي۔

**نصـرالدین** :- (ن+ص+ر+د+دي+ن)(ع ،اس ، مـذ) د دیـن مـددګار ، د دین فتح۔د نارینه ؤ یو عـام نوم دے۔خو د فارسـي ، ترکـي ادب کښې د یو مشهور فرضي کردار نوم دے۔ملا نصرالدین۔

**نصرالله** :- (ن+ص+رُ+ل+لا)(ع ، تر ،اس،مـذ) د الله تعالیٰ امداد ، د الله تعالیٰ فتح ، د نارینه ؤ یو مشهور نوم۔

**نصف** :- (ن+ص+ف)(ع ، اس ، مذ) نیم۔

**ـــ النهار** :- (ـــ (ف+ن) نَ+ها+ر)(ع ،تر،اس ،مذ) د ورځې نیمه ، غرمه۔ هغه فرضي خط کوم چې د قطب شمالي نه / څخه تر قطب جنوبي پورې د زمکې نه / څخه ګېر چاپېر رانښکلے شوے دے۔د نیمې ورځې دائره۔

**ـــ قطر** :- (ـــ قُ+ط+ر)(ع ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــونه) هغه نېغ خط کوم چې د یوې دائرې د مرکز نه / څخه تر محیطه پورې رانښکلے شي۔

**ـــ کار** :- (ـــ کا+ر)(عف ، تر ، اس، مذ) نیم کاره ، د زمکې د کرلویوه طریقـه چې د پېداوار نیمـه برخـه مالـک اخلي او پـاتې نیمـه زمینـدار یـا دهقان له ورکوي۔

**ـــ کاري** :- (ـــ کا+ري)(عف ،تر،اس ، مو) نیم کاري ۔

**ـــ کـره** :- (ـــ ک+رُ+رَ)(عـف ،تـر، اس ، مـو ، ج ـــرې) نیمـه کـره ، د زمکې غوټه نیمه برخه۔

**نصفا ـــ** :- (ن+ص+فا ـــ)(ف تر، صف) نیم په نیمه۔

**نصفین** :- (ن+ص+في+ن)(ع ، اس) د نصف تثنیه ده۔دوه نیمې برخې۔

**نصوار** :- (ن+ص+وا+ر)(و ـــ نسوار)۔

**ـــ ځنبل** :- (ـــ (ت) س+ش+ل) نسوار کول ، په خولهٔ کښې نسوار اچول

**ډبزې ـــ** :- (د ، پ+زې ـــ)(پ تر،اس، جم) هغـه نـرې مېـده نسـوار کـوم چې په پوزه کښې رانښکلے شي۔

**نصواري** :- (ن+ص+وا+ري)(و ـــ نسواري)۔

**نصوح** :- (ن+صو+ح)(ع ،صف) صاف ، صفا ، پوخ ، رښتونے۔

**نصوحا** :- (ن+صو+حا)(و ـــ نصوح)۔

**د ـــ توبه** :- (د ـــ تو+بَ) پخه توبه ، رښتوني او کلکه توبـه چې بیـا ئې ماتـه نهٔ کړي -په دې کښې د قرآن شریف یو آیت تـه اشاره ده ,,یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوا تُوبُوا اِلَی اللّٰهِ تَوبَة النصوحا ،،۔

**نصوص** :- (ن+صو+ص)(ع ،اس ،ج) د ,,نص ،، جمع ده ۔

**نصیب** :- (ن+صي+ب)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــونه) قسمت ، بخت ، برخه ، حصه ،حاصل ، میسر۔

**ـــ اعداد** :- (ـــ (ب) ا+ع+دا)(جمله) د غایبه جمله ده۔ چې دا څیز یـا کـار دې دښمنانو په برخه ورسي۔تا دې ترېنه خدا ے اوساتي۔

**ـــ اوچتېدل** :- بخت راوېښېدل۔ آب و دانه اوچتېدل ، د یو ځا ے څخه بـل ځا ے ته د تللو نصیب ,,بودل،،۔

**ـــ برابرېدل** :- د خوش بختۍ نه / څخه د خبرې سمون خوړل ، خلافِ توقـع یو کار کېدل۔

**ـــ جنګول** :- قسمت جنګول ، قسمت ازمائي کول۔

**ـــ خوار** :- (و ـــ نصیب خور)۔

**ـــ خور** :- (ـــ خو+ر)(ع ، پ ، تر ، صف) نصیب خوړوونکے ، مجازاً: خوش نصیبه ، د ښهٔ نصیب خاوند ، خوش بخته۔

**ـــ د بدو کېدل** :- په قسمت کښې تکلیف یا نقصان لیکلے ,,بودل،، ۔قسمت خرابېدل۔

**ـــ کېدل** :- په قسمت کښې لیکلے کېدل ، لکه : که نصیب شوے وي نو...

**په ـــ کېدل** :- په برخه کېدل ، حاصلېدل۔

تفکـــر د شاعرۍ لړمون شین کا
د غلیم دې په نصیب شي دا اشغال (خوشحال)

**ـــ د شه** :- (جمله) ستا دې په برخه ورسي ۔ عموماً د چا د خوراک د ست په موقع په جواب کښې دا جمله وئیلے شي۔

**ـــ دښمنان** :- (و ـــ نصیب اعداء)۔

**په ـــ کښې به نهٔ وه** :- (جمله) د کوم مقصود د نهٔ حاصلېدلو یـا د محرومۍ په موقع وئیلے شي -په قسمت کښې بـه ددې څیز یـا مقصد حاصلېد نه نهٔ وه لیکلې شوې۔

**ـــ والا** :- (وا+لَ)(عپ، تر،اس، مذ) د ښهٔ نصیب خاوند ، خوش قسمته۔

**ـــ ویښېدل** :- بخت بېدارېدل ،بخت راوېښېدل ۔ ښهٔ حالات راتلل ، ښهٔ حالات پېښېدل۔

**خپل خپل ـــ دے** :- (جمله) د هر چا بېـل بېـل شـان قسمت دے ۔ هر چاته د خپل خپل قسمت مطابق رسېږي۔

**خدائے دې ـــ که** :- (جمله)(و ـــ نصیب دې شه)۔

**د ـــ لیک** :- (د ـــ لي+ک)(عـپ ،تر،اس ،مذ) د قسمت لیـک ، څهٔ چې په نصیب کښې د اګاهو نه / څخه لیکلے شوے وي۔د ازل لیک۔

**(خپل) ـــ ژړل / جـړل** :- د خپـل بـد قسمت څخـه شـکایت یـا فریـاد کـول ، د خپلې بدقسمتۍ حال وئیل۔

**ـــ نصیب** :- (ـــ ن+صي+ب)(لاحقـه) پوره لفظ دے خو د لاحقې په طور هم راځي۔لکه : بد نصیب۔

**یا ـــ** :- (یا ـــ)(جمله) ندائیه جمله ده۔یعنې خدا ے خبر چې بیـا بـه کله داسې بخت برابرېږي۔ لکه : یا نصیب ! چې بیا به کله یو ځا ے کېږو !

**نصـیبه** :- (ن+صـي+بَ)(ع پ ، اس ، مـو) د نصیب تـانیثي شـکل دے ۔ د نصیب معنې لري۔

**لـه بـده ـــ** :- (ل+ب+د ـــ)(پ تر ، تف) د ,,لـه ښهٔ نصیبه ،، ضد۔د بـد قسمتۍ نه / څخه ، له بده مرغه۔

**له ښهٔ ـــ** :- (ل+خ/ښَ ـــ)(عپ ، تر ،تف) دخوش بختۍ نه / څخه۔د ښهٔ قسمت له کبله ، له ښهٔ مرغه۔

**نصیبېدل** :- (ن+صي+بې+د+ل)(مص) په نصیب کښـې کېـدل ، پـه برخـه رسېدل ، میسر کېدل ، ملاوېدل۔

**نصیحت** :- (ن+صي+ح+ت)(ع ، اس ،مذ ، ج ـــونه/ نصائح) پنـد ،د ښـه کار یا عمل وښا یا مشوره ، موعظت۔

**ـــ آمېـز** :- (ـــ آ+مـې+ز)(ف تر،صـف ، مـذ ، مـو ـــه) نصـیحت ورکوونکے ، له نصیحته ډک ، هغه کار ، دنیا وغېره چې اورېدونکے یا لیدونکے ترې عبرت حاصل کړي۔

**ــــ پـذیر** :- (ـــــ پ + ذي + ر)(عف،تر،صـف ،مـذ ، مـو ـــ ه) نصـیحت اخستونکے ، نصیحت منونکے ، په نصیحت عمل کوونکے ۔

**ــــ کول** :- پند ورکول ، د ښهٔ کار یا عمل مشوره ورکول۔

**ــــ گو** :- (ـــ گ + ر)(عف ،تر ، اس ، مذ ، ج ــ ان) نصیحت کوونکے ، ناصح ، پند ورکوونکے ۔

**ــــ منل** :- پند منل ، د چا په ښکه مشوره عمل کول۔

**ــــ منل** :-

**ــــ قبلول** :- په نصیحت عمل کول۔

**ــــ ورکول** :- (و ـــ نصیحت کول)۔

ور که نصیحت کړې له حدیثه له آیاته
قدر فائده نهٔ کړي جاهلان ته نصیحت (حافظ)

**ــــ وئیل** :- نصیحت کول ، پند ورکول۔

ع چې نادان ته نصیحت وائې خوشحاله

**نصیر** :- (ن +صي+ر)(ع ، اس ، مذ) امداد کـوونکے ، مـددگار ، مرسـتیال معاون ، د نارینهٔ په نومونو کښې راځي۔

**نصیري** :- (ن +صي + ري)(عف ، تر ، صف) هغه د نصیر سره تعلق لري ۔ چې د حضرت علي رض شیدائي وو ۔یوه فرقه چې حضرت علي رض خدا ے مني۔ جان نثار ، فدائي۔

**نضارت** :- (ن +ضا + ر + ت)(ع ،اس،مذ) تازه والے ، تازگي ، زلـق ، پـړق ،ښائست۔

**نضج** :- (نَ/ نُ +ض+ج)(ع ،اس) د مېوې پخېدنه ،د غوښې وغېره د هر څیز پخېدنه۔ (طب) د وجود د گنده مادې د نرمېدلو نه پس رابهېدنه۔

**نطاق** :- (ن + ط + طا + ق)(ع ، اس ، فا ، مـذ ، ج ــ ان) نطق کوونکے ، گویا کېدونکے ، ډېرې خبرې کوونکے ۔

**درادیو ــــ** :- (د ، را + د + یو ــــ)۔

**درېډیو ــــ** :- (د ، رې + ډ + یـو ــــ)(انگ ، پ تر ، اس ، مـذ ، ج ــ ان) په ریډیو خبرې کوونکے ، دریډیو اناؤنسر۔

**نطاق** :- (ن + طا + ق)(ع ،اس ،مذ،ج ــــ ونه) کمر بند ، د ملا د تړلو پټه یا لوے رومال۔

**نطفه** :- (نُ + ط + فَ)(ع ،اس،مو،ج ــــ فې) مني ، د مردیٔ اوبهٔ ، د بني ادم تخم۔اولاد ، پېداوښت۔

**په ــــ کښې** :- (پ تر،تف) په مني کښې ، د چا په پښت کښې ۔

**د ــــ نـه / څخه** :- (د ـــ ن / (ت) س + خ)(پ تـر، تـف) د منـي نـه ، د چـا پـه اولاد کښې۔

**نطـق** :- (نُ + ط + ق)(ع ،اس ،مـذ) دخبـرو کولـو قـوت ، گویـائي ۔ خبـره ، گفتگو ، تقریر۔سپاس نامه۔

**نظار** :-(ن (ظ) + ظا + ر)(لاحقه) عربي لفظ دے ۔ځینې وخت د لاحقې پـه طور راځي۔لکه خوش نظار۔

**نظـار** :- نُ + ظ + ظـا + ر)(ع ،اس ،مـذ ،ج ـــــ ان) نظاره کوونکے ،ناظر، نظر ساتونکے ، نگهبان۔

**نظارت** :- (ن + ظا + ر + ت)(ع ،اس ،مذ) نظر لرنه ، حفاظت کونه ، نگراني ، محافظت ، نگهباني۔دناظر عهده ، دناظر شعبه۔

**د ــــ تر لاندې** :- په نگرانیٔ کښې اخیستل ، نگراني کول۔

**ــــ کول** :- حفاظت کول ، نگهباني کول ، نگراني کول۔

**نظاره** :- (ن + ظ + رَ)(ع ، اس ، مو ، ج ـــــ رې) نظر اچونه ، کتنه ۔منظر ، د کتنې وړ ښکلے ځاے۔

**ــــ کول** :- کتنه کول ، کتل ، تماشه کول۔

**نظافت** :- (ن + ظا + ف +ت)(ع ،اس،مذ) صفائي ، پاکیزگي۔

**نظافتي** :- (ن + ظا + ف + تي)(عف ،تر،صف) نظافت ، (صفائي) سره تعلق لرونکے ، پاکیزگیٔ ته منسوب۔

**نظام** :-(ن + ظـا + م)(ع ، اس ، مـذ ،ج ـــــ ونـه) انتظام ، نظم ، درستگي ، انصرام،بندوبست۔سلسله ، ترتیب۔د مرغلرولړۍ۔جړه ، بنیاد ۔ روش ، طریقه ،د حېدر اباد د ریاست د حکمران لقب۔

**ــــ حکومـت** :- (ـــــ (م) حُ + کـو + م + ت)(عـف تـر ، اس ، مـذ) د حکومـت د چلولو ناظم۔د حکومت د چلولو طور طریقه۔

**ــــ شمسي** :- (ـــــ (م) ش + م + سي)(عـف ، تـر ، اس ، مـذ) د نمـر نظـام ، د نمر د سیارو ، دنمر نـه چاپېره گرځېدلو نظام ۔نمر او هغـه سیارې چې دنمر نه / څخه گرد چاپېره گرځي۔

**ــــ عصبي** :- (ـــ(م) ع + ص+ بي)(عف ، تر ،اس ، مذ) د انســـان (یـــا د حېوان) په وجود کښې د اعصابو یعني د پلواو اړېو د کار طور طریقه۔

**ــــ نامه** :- (ــــ نا + م)(فا تر،اس ،مو) قواعد ، قوانین و کانستیټیوشن۔

**اجتماعي ــــ** :- (ا + ج + ت + ما + عـي ــــ) هغه انتظام یا نظم و ضبط چې عام اولس سره تعلق لري۔

**دټولنې ــــ** :- (د ، ټو +ل + نې)(عـپ ، تر،اس ، مـذ) د معاشرې د چلولـو طـور طریقه

**نظاماً** :- (ن + ظا + م + ن)(ع ،تف) د نظام یا د بندوبست په طور ۔

**نظامت** :- (ن + ظا +م +ت)(عف ، تر،اس ،مذ) انتظام ، بندوبست ، نظم و نسق

**نظامات** :- (ن + ظا + ما + ت)(ع ، اس، ج) د نظام جمع ده ۔قواعد ، قـوانین ، انتظامات۔

**نظامي** :- (ن + ظا +مي)(عف ، تر ، صف) نظام سره تعلق لرونکے ، نظام تـه منسـوب ۔ انتظـامي ، بندوبسـتي ، بندوبست یـا انتظـام کوونکي ۔ فـوج سره متعلق ، فوجي۔

**ــــ افسر** :- (ــــ ا + ف + س + ر)(عف ،تر،اس،مذ،ج ــ ان) انتظـام یا بندوبست کوونکے افسر ، نظم و ضبط لـرونکے افسـر ۔فـوجي افسر ۔

**ــــ درېشي** :- (ـــــ د + رې + شې)(فپ ، تر ، اس ، ج) فـوجي جامـه ، فـوجي وردي۔

**ــــ لـوازم** :- (ـــــ ل + وا + ز + م)(عـف ، تـر،اس،ج) هغـه ضـروریات یـا ضـروري څیزونـه یـا کارونـه کـوم چـې نظـم و ضـبط د قـایم سـاتلو دپاره پکارېږي۔ فوجي ضروریات۔

**ــــ مرسته** :- (ــــ م +ر + س + تَ)(عپ ،تر، اس،مو) فـوجي امـداد ، فوجي تعاون۔

**ــــ منصب** :- (ــــ م+ ن + ص + ب)(عـف ، تر،اس،مـذ ،ج ــ ونـه) هغـه منصب یاعهده کومه چې فوځي سره تعلق لري۔فوځي عهده۔

**نظـائر** :- (ن + ظـا + ئ + ر)(ع ،اس ، ج) د ,, نظیـر ،، جمـع ده ۔ نظیرونـه ، مثالونه۔

**نظر** :- (ن + ظ + ر)(ع ،اس،مذ ،ج ـــ ونه) د لیدلو قوت ، بینائي ، بصـارت ، لیدنه ، توجه ، غور ، فکر ، نگراني ، په نظر کښې ساتنه ، نظریه ، خیـال ، بدنظر۔

**ــــ اچول** :- کتل ،کتنه کول ،سرسري طور سره کتل۔

**ــــ انداز کول** :- له نظره غورځول ،توجه نهٔ ورکول۔په شمېر کښې نهٔ راوستل۔

**ــــ باز** :- (ــــ با + ز)(ف تر ،صف ،مذ، مو ــ ه) نظر اچوونکے ، خصوصاً ښائسته ؤ ته کتنې کوونکے ، عاشق مزاج ، حسن پرست۔

**ــــ بازي** :- (ــــ با + زي)(ف تر،اس ، مو) په ښائسته ؤ نظر اچونه ، عاشق

مزاجي ، حسن پرستي.

**ـــ بند کول** :- د نګرانۍ تر لاندې راوستل . خصوصاً د پولیس په نګرانۍ کښې ساتل.

**ـــ بند کېدل** :- په نګرانۍ کښې راوستے کېدل ، د پولیس په نګرانۍ کښې راتلل

**ـــ بند (٥)** :- (ـــ ب + ن +د/ دَ)(ف تر ، صف ، مذ ، موــــ ه ) د نګرانۍ تر لاندې ، خصوصاً د فوځ یا د پولیس د نګرانۍ تر لاندې.

**ـــ بندي** :- (ـــ ب +ن +دي )(ف تر ،اس ،مو ) په نګرانۍ کښې راوستنه . (سحر) په جادو سره دچا د نظر قوت ختمول.

**ـــ په سما** :- (ـــ پ ، س + ما )(پ تر ،تف) نظر په اسمان لرنه ، پورته کتنه . مجازاً غرور کول ، کبر کول.

هسې یار سره څوک څۀ لره یاري کا

چې لـــه کبره ئې نظر وي په سماء (خوشحال)

**ـــ تلل ، دسترګو** :- ړندېدل ، ړوند کېدل.

**ـــ ثاني کول** :- په دویم نظر کتل ، په لیکلي شوي کتاب دویم نظر اچول ، دوباره کتل او غلطۍ وغېره ترې لرې کول . د فېصله شوې مقدمې مسل سر دوباره کتل.

**ـــ خرابېدل** :- د لیدلو قوت کمېدل ، بینائي کمزورې کېدل.

**ـــ خوړل** :- د بد نظر په وجه مړ کېدل یا سخت نقصان ور رسېدل ، لکه : د خلقو نظر وخوړ.

**ـــ راکښل** :- توجه را ګرځول ، متوجه کول.

**ـــ زغلول** :- هر خوا ته زر زر کتل ، تر لرې لرې پورې (په نظر ) لټول.

**ـــ ښخول ، په چا** :- چاته نېغ نېغ کتل ، په یونیب کښې چاته په غور کتل.

**ـــ ښخېدل ، په چا** :- نظر په چا ښښتل ، په یو نیب کتل ، چا ته . کوم څیز ډېر زیات خوښېدل . ډېر خوښېدل.

**ـــ فرېب** :- (ـــ ف + رې + ب )(عف ، تر ، صف ، مذ ،موــــ ه ) نظر لـه دوکه ورکوونکے ، مجازاً ښکلے ښائسته.

**ـــ کول** :- پام کول ، توجه ورکول . کتل ، لیدل.

**ـــ کېدل** :- نظر برابرېدل ، سترګې برابرېدل ، لیدل.

**ـــ کیرې بیرې کېدل** :- نظر په یو ځاے نۀ ایسارېدل ، کوم څیز په ښۀ طور نه لیدل

**ـــ لګېدل** :- د نظر کار کول ، په سترګو بینا بودل څیزونه ورښکاره کېدل.

**ـــ ماتول** :- د بد نظر د لګېدلو ، اثر ورکول . د بد نظر د پاره ټوټه ټانه کول . د بد نظر اثر لرې کول.

**ـــ نۀ کول** :- نۀ کتل ، مجازاً : توجه نۀ ورکول.

**په ـــ راتلل** :- ښکاره کېدل ، لېدلے کېدل.

**په ـــ کښې لرل** :- نګراني کول ، دنظر د لاندې ساتل.

**په تېز ـــ کتل** :- په غصه (ورته ) کتل.

**په درانۀ ـــ کتل** :- (و ـــ په دروند نظر کتل ).

**تر ـــ لاندې** :- د توجه تر لاندې ، په نګرانۍ کښې ، په خیال کښې.

**حسن ـــ** :- (حُ + س + نِ ـــ )(ف تر ،اس ،مذ ) ښۀ نظر ، ښۀ خیال ، ښۀ وائې.

**دـــ تعویز** :- (د ـــ ت+ (ع) + وي + ز )(عپ ،تر ،اس ،مذ ،ج ــ ونه ) هغه تعویز چې د خلقو د بد نظره پر بچ شي.

**د شک په ـــ** :- د شک کولو په طور ، په شکي انداز سره . لکه : چاته د شک په نظر کتل.

**ژور / جــوړ ـــ** :- (ج /ژ+و+ر ـــ ) ډېر په غــور سره کتنــه . د خبرې تـل تـه رسېدونکے نظر.

**سرسري ـــ اچول** :- سرسري طور سره کتل ، ډېرې توجه نه / څخه بغېر کتـل یا لوستل.

**لوړ ـــ** :- (لُ + ړ ـــ )(عپ تر ،اس ،مذ ) اوچت نظر ، اوچت خیالات.

**نظره** :-(ن + ظ + ر ) د نظر بدل شکل ، چې ځینو د شمېر یا د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**له ـــ تېرول** :- یوه کتنه کول ، یو ځل پرې نظر اچول (چې ئې ښۀ وپېژني ) سرسري لوسته کول ، سرسري طور سره لوستل ، جاج اخیستل ، انداز اخیستل.

**له / تر ـــ تېرېدل** :- په نظر کښې راتلل ، لیدلے کېدل ، یو ځل په لوستلو کښې راتلل.

**له ـــ غورزول** :- د حقارت په نظر ورته کتـل ، حقیر ګڼل ، ذلیـل ګڼل ، سپک ګڼل.

**له ـــ غورزېدل** :-

**لـه ـــ پرېوتـل** :- په نظر کښـې هېڅ راتلـل ، حقیـر ورښـکارېدل ، په نظر کښې سپکېدل.

**دـــ کول** :- بدنظر لګول ،بد نظر سره تکلیف ور رسول یا په کار کښـې خرابے راوستل.

**دـــ کېدل** :- په نظر لګېدل ، د بد نظر په وجه تکلیف رسېدل ، یا په کار کښې ورانے پېدا کېدل ، د بد نظر اثر کېدل.

**دـــ پناه کېدل** :- د مخې نه لرې کېدل، داسې ځاے ته تلل چې په نظر نۀ راځي . ورکېدل ، دفع کېدل.

**له ـــ سپک راتلل** :- په نظر کښې سپک معلومېدل ،حقیر ورښکارېدل.

**دـــ نشي / مشي** :- (د ـــ ن / م+ شي )(جمله ) د چا د صفت په موقع وئیلے شي . چې د صفت په وجه دربانديې بد نظر ونۀ لګه . یعنې څۀ تکلیف یا ورانے درپېښ نشي . نظر بد دور.

**له ـــ هېڅ راتلل** :- په نظر کښې سپک راتلل ، حقیر ورښکارېدل.

**نظري** :- (ن + ظ + ري )(ف تر ، صف) د بدیهي ضد ، خیال او فکر سره تعلق لرونکے . لکه : په نظري طور . هغه علم چې په کښې د موجوداتو د تصور په حقله بحث کولے شي.

**نظریاتي** :- (ن + ظ + ر + یا + تي )(عف ،تر ،صف ) نظریات سره تعلق لرونکے ، نظریات ته منسوب ، خاص فکر ته منسوب ، نظریه لرونکے . لکه : نظریاتي مملکت.

**نظریه** :- (ن + ظ + ري + يَ )(عف تر ،مو ،ج ــ یې / ات ) د فکر او سوچ نتیجه ، رائې ، عقیده . هغه مسئله چې په کښې د سوچ او فکر نه / څخه کار اخستے شي . اصول.

**ـــ ارتقاء** :- (ـــ ا + ر + ت + قا )(عف ، تر ، اس ،مو ) د مغرب د یو مفکر سائنسدان نظریه چې ژوندي څیزونه په موجوده شکل کښې نۀ وو پېدا شوي . بلکه هر څیز د بقائے اصلح او د انتخاب د نظریې تر لاندې بدلېږي رابدلېږي او د لکونو کروړونو کلونو د تغیر او تبدل نه وروستو تردې شکله رارسېدلي دي . ددې نظریې مطابق بني ادم هم د یو قسم بیزوګانو نه راپېدا شوے دے . د بقائے اصلح نظریه.

**ـــ اضافت** :- (ـــ ئې ) ا + ضا + ف + ت )(عف ،تر ،اس ،مو ) د آئن سټائن نظریه . چې دا زمان او مکان هېڅ حقیقت نۀ لري . بلکې دا یو اضافي حېثیت لري.

**ـــ غوښتل ،چا څخه** :- د چا د خیال یا د فکر نتیجه معلومول . د چا د عقیدې په حقله پوښتنه کول . رائې پوښتل.

ـــــ **وړاندې کول** :- د خپل فکر څخه پیدا شوې نتیجه وړاندې کول ـ عقیده وړاندې کول ـ

**نظم** :- (ن+ظ+م) ع ،اس ،مذ) انتظام ، ترتیب ، بندوبست ، لړی، مسلک ، موزون کلام ، (د نثر په مقابله کښې) ـ

ـــــ **کول** :- د نظم په شعرونو کښې بیانول ، نظم جوړول ـ

ـــــ **و ضبط** :- (ـــ (مو) ض + ب+ ط) (عف ، تر ، اس ، مذ) انتظام او په قابو کښې لرنه ، بندوبست او امن ساتنه ـ

ـــــ **و نسق** :- (مو) نَ + س + ق) (عپ ، تر ، اس ،مذ) د دواړو لفظونو معنې تقریباً یو شان دي ـ انتظام ، نظام ، بندوبست ، د علاقې یا د سلطنت تدبیر ـ

ـــــ **و نسق چلول** :- انتظام کول ، بندوبست کول ، انصرام کول ـ

ـــــ **و نسق په لاس کښې اخستل** :- انتظام او د ادارې د چلولو اختیار په خپله قبضه کښې راوستل ـ

**نظمي** :- (ن + ظ + مي) (عف ، تر ، صف) نظم سره تعلق لرونکے ، نظم ته منسوب ، انتظام سره متعلق ، نظم ویونکے ـ

**نظميه** :- (ن + ظ + مي + يَ) (عف ،تر ، اس) پولیس ، پولس ـ

**نظیر** :- (ن +ظي+ ر) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) مثل ، مانند ، په شان ـ نمونه ، مثال ـ د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي ـ د زنانه ؤ په نومونو کښې تانیثي شکل راځي ـ

ـــــ **نه لرل** :- مثل نهٔ لرل ، سارے نهٔ لرل ، بې مثال ,, بودل ،، لاثاني ,,بودل،، ـ

ـــــ **ورکول** :-

ـــــ **پیش کول** :- مثال ورکول ، نمونه وړاندې کول ـ

ـــــ **غوښتل** :- مثال غوښتل ، نمونه غوښتل ـ

**نظیر** :- (ن + ظي + ر) د ,, نظر ،، بدل شکل دے ـ

ـــ **خوړلے** :- (ـــ خ + و + ړ +لے) (پ تر ، اس مف ، مذ ، ج ـ لي) بد نظر وهلے ، د نظره شوے ـ

**نظيف** :- (ن + ظي + ف) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) پاکیزه ، پاک ، صفا ، حلال ، جائز ـ

**نعت** :- (ن+ع+ت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) صفت ، تعریف ، ستاینه ،خصوصاً هغه نظم چې په کښې د رسول پاک صلي الله علیه وسلم صفتونه بیان شوي وي ـ

ـــــ **خوان** :- (ـــــ خ + وا + ن) (ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) هغه سړے چې خوش اوازۍ سره د رسول پاک نعت لولي ـ

ـــ **خوانه** :- (ـــ خ + وا + نَ) (عپ ، تر ، اس ، مو ، ج ـــ نې / انې) د ,, نعت خوا ،، تانیث دے ـ

ـــــ **خواني** :- (ـــــ خ + وا + ني) (ف تر ، اس ، مو) په خوش آوازۍ سره د رسول پاک صلي الله علیه وسلم د نعت لوستنه ـ

ـــــ **گو** :- (ـــــ گو) (و ـــــ نعت خوان) ـ

ـــــ **ویل** :- نعتیه نظم جوړول ـ

ـــــ **ویل** :- نعتیه نظم جوړول ـ د نعت نظم په سُر سره وئیل ـ نعت خواني کول ـ

**نعناع** :-(ن + (ع) نا + (ع) (ع ، اس ، مو) ځنګلي پودینه ، نانا ـ

**نعتیه** :-(ن + ع + تي + يَ) (عف ، تر ، صف) نعت سره متعلق ، نعت ته منسوب ـ هغه نظم چې په کښې د رسول پاک صلي الله علیه وسلم صفت او مدح بیان شوې وي ـ لکه : نعتیه کلام ـ

**نعره** :-(ن + ع + رَ) (ف ، اس ، مو ، ج ـــ رې) چغه، کریکه ، په زوره اواز یا غږ ، ناره ـ

ـــ **تکبیر** :- (ـــ (ئې) ت + ک + بي + ر) (عف ، تر ، اس ، مذ) د تکبیر نعره ، د الله اکبر نعره ـ

ـــــ **حیدري** :- (ـــ (ئې) ح+ د + ري) (عف ، تر ، اس ، مو) د حضرت علي کرم الله وجهه نوم په زوره ویل ـ یا علي!

ـــــ **زن** :- (ـــــ ز + ن) (ف تر ، صف ، اس ، مذ، ج ــ ان) نعرې وهونکے ، چغه کوونکے ، په چغه ویونکے ـ

ـــــ **زنه** :- (ـــ زَ + نَ) (فپ ، تر ،اس ، مو، ج ــ نې) د ,, نعره زن ،، تانیث دے ـ

ـــــ **کول** :- چغه کول ، کریکه وهل ، په زوره اواز ، ږغ کول ـ

ـــــ **وهل** :- (و ـــــ نعره کول) ـ

**نعرې** :- (ن + (ع) + رې) (د ,, نعره ،، جمع ده ـ د ,, نعره ،، بدل شکل دے ـ چې د مغیره ؤ تورو سره راځي ـ

ـــــ **وهل** :- چغې وهل ، په زوره آوازونه کول ـ بلل ، رابلل ـ لکه : مور درته نعرې وهي!

**نعش** :- (ن + ع + ش) (ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه) مړے ، لاش ـ

**نعل** :- (ن + (ع) + ل) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د وسپنې هغه نیمګړې حلقه شان چې د اسونو په سمونو لګولے شي ـ نال هم وایهٔ او لیکلے شي ـ پنه، پیزار ـ

نـــازولي خوبان شاه له روشن لاړه
مونږ ئې نهٔ رسو د نعلو د شراک ته (حافظ)

**نعلول** :- (ل + (ع) +ل+ؤ+ل) (مص) نعلونه لګول ، نالونه لګول ـ

**نعلونه** :- (ن + ع + لو + نَ) (اس ، مذ ، ج) د نعل جمع ده ـ

ـــــ **وهل** :- د اسونو په سمونو نعلونه ورټکوهل ـ

اسونو نعلونه وهل چیندخو هم ورته پښې پورته کړې ـ (متل)

مجازاً : د سفر تیارے کول ـ

**نعلین** :- (ن + ع + لي + ن) (ع ، اس ، تثنیه) د پښو جوړه ، پنې ، پیزار ـ

د بلبل غوندې خرام کو چې په تلهٔ ئې
د نعلین ئې پـه افلاکو کښې تنا شي (سعید)

**نعم** :- (ن + ع + م) (ع ، اس ، ج) د نعمت جمع ده ـ نعمتونـه ، ښهٔ او اعلیٰ څیزونه

ـــ **البدل** :- (ـــ (م + ل) ب + د + ل) (ع ،تر،اس ،مذ) ښهٔ او غوره بدل ، ښهٔ عوض ، د یو په بدله کښې غوره څیز یا بني ادم ـ

**نعم** :- (ن + ع + م) (ع ،حرف) هو ، او (مثبت جواب) ـ

**نعماني** :- (ن + ع + ما+ ني) (اس ، مع) د سامل زئیو یوه قبیله ده ـ بنګښن دي د نعمانیو ځانګې :کسي، او مري ـ

**نعمت** :- (ن + ع + م + ت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / نعم) ښهٔ روزي د اسائش ښهٔ څیز ، مالي بخښنه ، عطا ، ورکړه ، خصوصاً هغه چې د خدائے پاک د طرفه عطا شي ـ د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي ـ

ـــ **کده** :- (ـــــ ک + د) (ف تر ،اس ، مو ، ج ـــ دې) هغه ځائے یا کور چېرته چې د (خوراک) ښهٔ ښهٔ څیزونه موجود وي ـ

ـــــ **عظمي** :- (ـــ (ت) + عُ + ظ + ما) (عف ، تر ، اس) لوے نعمت ـ

ـــــ **غیرمترقبه** :- (ـــــ (ت) غي+ر+م+ت+ر+ق +بَ) (عف،تر،اس،مذ) هغه نعمت چې بغیر د توقع او طمعې لاس ته راشي ـ

ـــ **گڼل** :- د ښېګړې ، فائدې او د اسائش لوے څیز ګڼل ـ

ـــــ **ورکول** :- ښهٔ روزي یا د اسائش څیز ورکول ـ مال دولت ورکول ـ

په ـــــ **لویه نوال ساتل** :- په نعمتونو او په ارام د اسائش ساتل ـ

**نعوت** :- (نُ + عُو + ت) (ع،اس ، ج) د ,, نعت ،، جمع ده ـ

**نعوذ** :-(ن + عو + ذ) (ع ، جمله) مونږ پناه غواړو ـ

**ـــــبالله** :- (ـــب + ل + لا + ه) (ع ، جمله) مونږ ددې کار يا خبرې څخه د خداے پناغ غواړو.-خداے د مونږ ترې وساتي.-کومه بده خبره چې خولې راشي يا که بله خرابه خبره واوري نو د کرکې ځرګندولو دپاره دا جمله وئيلے شي.

**نعوذ بالله منها** :- (ن + عُـو + ذُ + ب + ل + لا + ه م + ن + ها) (ع ، جمله) زۀ ددې څخه د الله پناه غواړم.-د شيطان يا د بد کار د ذکر په موقع وئيلے شي.-چې خداے دې ما ترې وساتي.

همېشه د بېلتانۀ له غمه لولم

زۀ رحمـــــان نعوذ بالله منها (رحمان بابا)

**نعيم** :- (ن + عـي + م) (ع ،اس،صف،مو ـــ ه) نعمت ، مال دولت ، بهښت.

د لئيم اليم عذاب ځاے ئې جحيم دے

کـــريم خوښ شۀ چې نعيم ته ئې مقبله (حافظ)

نعمت واله ، د نعمت ، مال دولت څښتن. د نارينه ؤ په نومونو کښې راځي.-د زنانه ؤ په نوم کښې تانيثي شکل ,,نعيمه،، راځي.

**نغار چنه** :- (ن + غا + ر + چ + ڼ) (پ تر ،اس، مو ، ج ـــ ړې) د ,نغارچي ،، تانيث دے.

**نغارو** :- (ن + غا + رو) د ,, نغارې ،، (جمع) بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**دـــ (کوڼ)** :- (د ـــ کو + ڼ) (پ تر،اس) هغه سړے چې بې حده ډېر کوڼ وي چې ايله د نغارې اواز اوري.-ډېر زيات کوڼ.

**نغاره** :- (ن + غا + ر) (اس ، مو ، ج ـــــ رې) نقاره ، نوبت.

**ـــــوهل** :- نقاره وهل ، نغاره غړول ، ډنډوره وهل .-په نغارې سره خلق خبرې ، اعلان کول.

**ځان يا ګېډه ـــ کول** :- ډېر زيات خوراک کول.

**سر ـــ کول ، چاته** :- ډېره مغز خوري کول ، ډېر زيات پند و نصيحت کول.

**نغارے** :- (نْ + غا + رے) (و ـــ نُغَرَے).

**نغارے** :- (ن + غا + رے) (صف ، مذ ، ج ـــ رې) تندې وهلے ، د استسقا مريض

**ـــــغړول ، چاته** :- مجازاً : ډېر په زوره زوره خبرې کول چا سره.

**ـــــوهل** :- ډېر نغارې غړول. مجازاً : خبره خورول ، خبرې لـه تر لـرې پورې شهرت ورکول.

**نغارې** :- (ن + غا + رې) د ,, نغاره ،، جمع ده - د ,, نغاره، ،بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**نغاړکے** :- (ن + غـا + ړ + ک + ى) (اس ، مـو) د زوړ چيـړو وغېـره څخه جـوړ شوے توشک.

**نغاړل** :- (ن + غا + ړ + ل) (مص) نغښـتـل سره جوړه مصدر دے .-يعنې ځينې فعلونه د يو مصدر نه او ځينې د بل مصدر څخه جوړېږي - لاړ وهـل ، مسافت طې کول.

**نغاړونکے** :- (ن +غـا+ړو+ن+کے) (پ تر ،اس ، فا ، مذ ،ج ـ کي) نغښـتونکے - هغه کپړه وغېره چې کوم څيز په کښې رانغښتے شي.

**نغاړى** :- (ن + غا + ړى) (و ـــ نغارکى).

**نغاړى** :- (ن + غا + ړ + ى) (فعلي) د نغاړل مصدر څخه د حال (حاضر) فعـل - منجيله.

**نغاړي** :- (ن + غا + ړي) (فعل) د نغاړل مصدر څخه د حال (غائب) فعل.

**نغاړے** :- (ن + غا + ړے) (و ـــ نغرے).

**نغړنزي** :- (ن + غ + ړ + ن + زي) (اس ، جم) چنغوزي ،چلغوزي - د صنوبر د ونې مېوه.

**نغت** :- (ن + غ + ت) (اس،مذ ،ج ـــ ونه) لمسه ، تحريک ، راپارونه .(عموماً د مؤنث په شکل کښې نغوته استعمالېږي).

**نغتل** :- (ن + غ + ت +ل) (مص) (و ـــ نغوتل).

**تغته** :-(ن + غ + تَ) (و ـــ نغوته).

**نغته** :-(ن + غ + ت) (اس ، مو ، ج ـــ تې) نصيحت ، پند ، موعظمت.

**ـــــورکول** :- نصيحت ورکول ، پند ورکول.

**نغد** :- (ن + غ + د) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) د ,, نقد ،، بدل شکل دے .-د قرض پور ضد .

**نغدول** :- (ن + غ + د + ؤ + ل) (مص) د مـاتو پيسـو پـه ځـاے نغـدې روپۍ اخستل ، پيسې د چا نه وصولول ، قيمت وصولول.

**پيسې ـــــ** :- (پې + سې ـــــ) د کوم څيز په خرڅولو قيمت نغد وصولول ، قيمت وصولول.

**نغده** :- (ن + غ + دَ) (صف ،مو،ج ـــــ دې) د ,, نغد ،، تانيث دے.

**ـــــروپۍ** :- (ـــــرو + پ + ى) (پ تر ،اس ،مو) هغه روپۍ (سکه) چې کره وي.-ټنګېدلې روپۍ.- هغه روپۍ (د قيمت) چې لاس په لاس وصولېږي.

**نغدي** :- (ن+غ + دي) (اس،مو) نغدې روپۍ ،نقدي ،نقد مال.

**نغدې** :- د ,, نغده ،، جمع ده.

**ـــــپيسې** :- (ـــــپې + سې) نغد قيمت ، لاس په لاس قيمت (وصولونه).

**ـــــروپۍ** :- (ـــــرو + پ + ى) (پ تر ، اس ، مو) د ,, نغده روپۍ ،، جمع ده.

**نغر** :- (ن + غ + ر) (لاحقه) (و ـــــ نګر).

**نغر** :- (ن + غ + ر) (اس،مذ) د زغم خاوند .

هم ددې په ثبات غر

هم زغوتې لکـه نغر (زړه پانګه ، شرعت اسلام)

**نغر** :- (ن + غ + ر) (اس ، مذ) په اوبو يـا زمکه کښـې ورښـېدل ، غرقېدل ، جذب کېدل ، لواړ تېرېدنه.

**ـــ کول** :- جذب کول ، په اوبو يا زمکه کښې ننه وتل. لواړ تېرول ، نغړدل.

**ـــــ کېدل** :- جذب کېدل ، په اوبو يا زمکه کښې ننه وتل.-نغړدېدل.

**نغرل** :- (ن + غ + ر + ل) (مص) لواړ تېرول ، سالم د مرۍ نـه ُڅخه ورښکته کول ، جذب کول.

حق باطل سره بېلېږي رابرسېر کړه

مزکې څو بـه د قارون خزانې نغرې (خوشحال)

په غېر مهذبه طريقه خوراک کول.

خوره او ونغره يوه معنې لري خو.......(متل)

**نغرتل** :- (ن + غ + ر + ت + ل) (و ـــــ نغړدل).

**نغـردل** :- (ن +غ ـ ر + د +ل) (مـص) لـواړ تېـرول ، سـالم د مـرۍ نـه ُڅخـه ورښکته کول. جذب کول.

**نغرښت** :- (ن+غ +ر+خ/ش + ت) (پ تر ،حمص) نغاړنه ، نغښت.

**نغـرے** :- (ن + غ + رے) (اس ، مذ ،ج ـــ ري) د اخلې پخلې دپاره د اور د بلولـو ځاے ، اتش دان.-مجازاً : کور ، تبر ، خاندان ، چې په يو نغرې سره راجمع کېږي.

**دبجلۍ ـــــ** :- (د+ب+ج+ل+ى ـــ) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ري) هغـه نغـرے چې د بجلۍ په ذريعه ګرمولے شي.

**سر ـــ کول ، چاته** :- چا سره ډېر سر خوړول ،ډېر زيات پوهول ، د پوهولـو دپاره ډېر زياتې خبرې کول ، سر نغاره کول.

**سوړ ـــ** :- (سو + ړ ـــــ) (پ تر ،اس ،مذ ، ج ـــ ري) نغرے چې اور پـه کښـې نۀ بلېږي.- کنايتاً شوم ، کنجوس.

**نغـري** :-(ن + غ + ري)د ,, نغـرے ،، جمـع ده ـ د ,,نغرے، بـدل شـکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**د ـــ غاړه** :- (د ـــ غا + ړ َ).

**د ـــ ځنــډه** :- (د ـــ (ت) س + ن + ډ )(پ تـر ، اس،مـو،ج ـــړي/ډي) د نغـري چارچاپېره ځاے چې د کور خلق په کښې نغري ته کښېني. مجازاً: کور.

خـــوشحاله زوړ شوې قـرار ناست اوسه

پښتون چې زوړ شي د نغري دځنډې شي (خوشحال)

**د ـــ دغاړي / ځنډي** :- (پ تر ،صف) هغه کس چې د چا دکور د نغري په غـاړه کښېناستے شي.-ډېر نژدې خپل.

**نغړاند** :- (ن + غ + ړا + ن + د )(صف ،مـذ ،مو ـــه) کتونکے ،انتظار کـوونکے ، سترګې په لاړ.

**نغړل** :-(ن + غ + ړ + ل)(مص) لواړ تېرول ، نغړدل.

**نغړدل** :-(ن + غ + ړ + د + ل)(مص) تر کومې تېرول ، خوړل ، لواړ تېـرول.وژل ، قتلول.

تمامي جهان ئې ونغړد

چې ئې لاس شه باندِ بر (رحمان بابا)

**خبره ـــ** :- (خ + ب + ر ـــ) خولې له راغلې خبره په مرۍ کښې حيصارول ، د خبرو په دوران کښې خولې له راغلې خبره لـه خولې نـه يستـل ، پـه خبره غلے پاتې کېدل.

**نغړدګېدل** :- له حلقه تېرولے کېدل ، نغړدلے کېدل.

تريخ لوګے به دې د قند پـــه څېر نغړد شي

که صورت د عشق په اور کښې تماکوکړې (رحمان بابا)

**نغړدنه** :- (ن + غ + ړ + د+ نَ)(حمص) لـواړ لـواړ تېرونـه ، سـالم / ثابت څيـز د مرۍ نه / ځخه ورښکته کونه. په بده ، بدتهذيبه طريقه خوراک کونه.

**نغړښت** :- (ن + غ + ړ + خ/ش + ت )(و ـــ نغښت).

**نغړځے** :- (ن + غ + ړ + ن + (د) زے )(اس،ج) چلغوزے ،جلغوزے.

**نغړۍ** :- (ن + غ + ړ + ئ)(اس،مو ) غړۍ.-(د منګي يا د بل کوم لوښي).

**نغړے** :-(ن + غ + ړے )(اس،مذ ،ج ـــړي) غړۍ د منګي. لکه : منګے که مات شۀ نو چې نغړے په لاس راشي.

**نغـز** :-(ن + غ + ز )(ف ،صف) ښـکلے ،ښائسـته ـښائسـته ،غـوره ، عمـده ، اعلى ، عجيبه.

**ـــ ګفتار** :- (ـــ ګ +ف +تا + ر )(عف ،تر ،صف ،مـذ ،مو ـــه) خوش ګفتـار ، ښکلے او خوندناکه خبرې.

**ـــ ګو** :- (ـــ ګو) ښکلے وېناکوونکے ، ښکلي شعرونه ويونکے.

**نغښت** :-(ن + غ + خ/ش + ت )(حمص) نغاړنه ، نغښتنه ، د نغـاړلو عمـل. تـول ، همګي.

**نغښتل** :- (ن + غ + خ/ش + ت + ل )(مـص) نغـاړل ،د نغـاړل جـوړ ئـې مصـدر دے يعنې ځينې فعلونه د يومصدر نه او ځينې د بل مصدر ځخه جوړولے شي.-د کوم څيز نه / ځخه کپړه وغېره تاوول.

**نغښتونے** :- (ن + غ + خ/ش+تو+ نے )(پ تر ،اس ، مذ ،ج ـــ نې) هغـه کپـړه يا څادر چې په کښې جامې وغېره نغړي ، بوغبند.

**نغلاند** :- (ن + غ + لا+ ن + د )(صف ،مذ ،مو ـــه) وږے ،ګرسنه .(عموماً د سترګو سره يو ځاے راځي .لکه نغلاندې سترګې) خواهشمند ،مشتاق.

**نغلاندي** :- (ن + غ + لا+ ن + دي) د نغلانده جمع ده.

**ـــ سترګې** :- وږې سترګې ،حرصي سترګې ،خواهشمنې سترګې.

پـــه ديدن د يـــار مړې شوې

د خوشحال نغلاندې سترګې (خوشحال)

**نغم** :- (ن + غ + م )(اس ،مذ ،ج ـــونه) کنډر ،نقب،لغم ،رخنه ،سورے.

**ـــ آچول** :-

**ـــ کښل** :- سرنګ کنستل،کنډرکول ، نقب لګول.

**نغمه** :-(ن + غ + مَ)(ف ،اس ،مو ،ج ـمې / ات) سندره ، ګيت ،خوش اوازي ، سرناک اواز ، ښکلے اواز.

**ـــ پرداز** :- (ـــ پ + ر + دا + ز )(و ـــ نغمه سرا ).

**ـــ زن** :- (ـــ ز + ن )(ف تر ،صف ،مذ ،مو ـــه) نغمه سرا ، نغمـه ويونکے ، سندره ويونکے.

**ـــ سرا** :- سندره ويونکے.

**ـــ سرا کېدل** :- خوش اوازۍ سره سندره وئيل.

**ـــ سرائي** :- سندره وئينه ، سندر غاړے توب.

**ـــ سرائي کول** :- (و ـــ نغمه سرا کېدل).

**ـــ سنج** :- (ـــ س + ن + ج )(ف تر ،صف ،مذ ،مو ـــه) نغمـــه ويـــونکے ، سندره ويونکے.

**ـــ سنجي** :- (ـــ س + ن + جي )(ف تـر ،اس ،مـو ) سندره وئينـه ، سندره په سُر سره وئينه.

**ـــ کول** :- نغمه وئيل ، چغار کول.

د بلبـــــلو نغمه زاغ کـولے نشي

هر سرود اواز په طور د خپل تارکا (رحمان بابا)

**نغوته** :- (ن + غ /غو + ت )(اس،مو،ج ـــتې) نصيحت ، پند.

نۀ د پلار په نغوته کار کړې

نــــۀ په نغوته د استاد دي (خوشحال)

لمسه ، (بدو ته) اماده کونه ، اشاره ، ايما.

د شهوت په نغوته مه ځه ، شهوت اور دے

پــــه دا اور د ډېـــرو سوي دي کـــورونه (خوشحال)

**ـــ کول** :- په نغوته عمل کول ،په نصيحت يا په وېنا عمل کول.

د صفي ادم مقام په اسمان پاس وو

دد ښنه نغوته ئې وکړه په زمين شو (مرزا خان)

**نغوتې** :- (ن + غ / غو + تې )(اس،مو،ج ) لمسې ، د لمسولو خبرې.

**نغوره** :- (ن + غو + ر )(پ ،مو) پخونه ،پختن.

**نغـوره** :- (ن + غ + و + ر )(اس ، جم) يـو قسـم بـوټے دے ـغرئيـز ،لـوئې لـوئې پاڼې لري.-جرړه ئې لويه د مولۍ په شان وي.-خلق ئې خوري.

**نغـورۍ** :-(ن + غ + و + ر + ئ )(اس ،مـو ) يـو قسـم ګيـاه ده ـ.د اوښـانو خـوراک دے.

**نغـوړ** :-(ن + غـو + ړ )(اس ، مـذ ،ج ـــونـه) جرمانـه ،ناغه،نغـده بدلـه ، هغـه جرمانه چې په کوم ملامته سړي لګولے شي.

**نغـوړل** :- (ن + غ + و + ګ / ژ + ل )(مـص) اوربـدل ، غـوږ نيـول ، توجـه سـره اورېدل.-په لمسه کښې راتلل ، خبره منل.

د رقيب خبـــــره مه نغوړه اے ياره

چې رقيب هغه شېطان دے لکه وو (خوشحال)

**نغي** :- (نُ / نو +غے )(اس ،مذ ،ج ـعي) داغ ، نښان.

**نغېل** :- (ن + غې + ل )(اس ،مذ ،ج ـــونه) د ګېند نه / ځخه چارچاپېره حاشيه

**نفاخ** :-(ن+ف+فا+خ )(ع،صف،مذ،مو ـــه) باد پېداکوونکے ، بادي.

**نفاذ** :-(ن + فا + ذ )(ع ،اس ،مذ ) نافذ کېدنه ، جاري کېدنه ، د حکم وغېـره جاري کېدنه ، تعجيل کېدنه.

**ـــ کېدل** :- حکم ، قانون وغېره جاري کېدل.

**نفاس** :-(ن + فا + س )(ع ، اس ،مـذ ،ج ـــونه) هغه ويني چې د ښځې د پېټ

بدن څخه د اولاد کېدلو نه وروستو څاڅي.

**نفاست** :- (ن + فا + س + ت) (ع، اس، مذ، ج ــ ونه) پاکیزګي، پاکوالے، صفائي، خوبي، لطافت.

**نفاق** :- (ن + فا + ق) (ع، اس، مذ، ج ــ ونه) جدائي، بېلتون، هجران.

که ئې سر ځي که ئې مال ځي خدا ے دې نۀ کا
د طالب او د مطلوب تر مېنځ نفاق (رحمان بابا)

**نفاق** :- (ن/نَ + فا + ق) (ع، اس، مذ، ج ــ ونه) بې اتفاقي، په ظاهره دوستي په زړۀ کښې دښمني، منافقت، په ظاهره نور څۀ او په زړۀ کښې نور څۀ (لرل).

**نفت** :- (ن + ف + ت) (اس، مذ) یو قسم تېل، دا دوه رنګه وي. یو تور او بل سپین. تور نفت بلولے شي او سپین په داروګانو کښې استعمالولے شي.

**ــــ انداز** :- (ـــا + ن + دا + ز) (ف تر، صف، مو، ـــه) اتشبازي کوونکے.

**ــ لرونکے** :- هغه چې نفت (تېل) لري. لکه : نفت لرونکي منابع.

**نفتالین** :- (ن + ف + تا + لي + ن) (انګ، اس، جم) یو قسم ماده چې د کاڼي د کوئلې نه/څخه لاس ته راځي.

**نفتي** :- (ن + ف + تي) نفت لرونکے. نفتو سره تعلق لرونکے، نفتو ته منسوب.

**نفتو** :- (ن + ف + تو) د نفت بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**د ـــ چینې** :- (د ـــ چي + نې) (ف تر، اس، ج) هغه چینې (چشمې) چې نفت ترې راووزي.

**نفخ** :- (ن + ف + خ) (ع، اس، مذ) پړسېدنه، پړسوب پُوکے، پوک وهنه.

**ــــ صور** :- (ـــ (خ) + صو + ر) (عف تر، اس، مذ) د صور (ښکر، قرنا) پُوک وهنه، د صور غږونه. (د قیامت علامت).

**نفخه** :- (ن + ف + خَ) (ع، اس، مو، ج ـــ خې/ات) خوشبوئي، خوشبوئین.

**نفر** :- (ن + ف + ر) (اس، مذ، ج ـــ ان) کس، سړے نوکر، ملازم (په عربۍ کښې د دریو نه/څخه تر لسو کسانو پورې غونډې ته وائي).

**ــــ پرور** :- بنده پرور، د نوکر یا د غلام بنه پالنه کوونکے.

**نفرت** :- (ن + ف + ر + ت) (ع، اس، مذ، ج ـــ ونه) (د کوم څیز نه/څخه تنښتېدنه)، کرکه، کراهت، ناخوښي، ناګواري.

**ــــ انګېز** :- (ـــا + ن + ګې + ز) (ف تر، صف، مذ، مو ـــ ه) نفرت پېدا کوونکے، کرکه را ولاړوونکے.

**د ـــ په سترګه کتل، چا ته** :- کرکه ځنې کول، ناخوښي ښکندول.

**ــــ پاروَل** :- نفرت را ولاړول، کرکه را ولاړول. کرکه پېدا کول.

**ــــ کول** :- کرکه کول، نۀ خوښه ول، کراهت کول، د چا څخه لرې تښتېدل.

**ــــ کېدل** :- کرکه کېدل، ناخوښي کېدل، کراهت کېدل.

**نفره** :- (ن + ف + ر) د ,, نفر،، بدل شکل دے. عموماً د اعدادو سره راځي. لکه : لس نفره.

**نفري** :- (ن + ف + ري) (اس، مو) د سړو شمېر، تعداد (د کسانو) مزدوران، کار کوونکي.

**نفرین** :- (ن + ف + ري + ن) (ع، حرف) د نفرت او کرکې تورے دے. ملامت، لعنت، پټې مو.

**ــــ ویل** :-

**ــ کول** :- لعنت ویل، پټې مو ویل. ملامته ویل.

**نفس** :- (ن + ف + س) (ع، اس، مذ، ج ـــ ونه/انفاس) ساه، ساهه، دم ګړۍ، لمحه، لږ ساعت.

**ــــ پرستي** :- (ـــ پ + ر + س + تي) (عف، تر، اس، مو) د خپل نفس پالنه کونه، د خپل ځان فکر کونه، خود غرضي. شهوت پرستي، عیاشي.

**ــــ ختل** :- ساه ختل، مړ کېدل. په کوم کار کښې ډېر سخت تکلیف زغمل.

**نفس** :- (ن + ف + س) (ع، اس، مذ، ج ـــ ونه/انفوس) ځان، ذات، روح.

**ــــ اماره** :- (ـــا + مْ + ما + ر) (عف، تر، اس، مذ) د بني ادم هغه خواهش چې هغه بدو کارونو ته اماده کوي. حیواني یا شېطاني قوت.

خلق په شېطان باندې لعنت لعنت لرینه
چـــارې پـــه سړیو واړه نفس اماره کا (خوشحال)

**نفسي** :- (ن + ف + سي) (عف، تر، صف) نفس سره تعلق لرونکے، نفس ته منسوب.

**نفط** :- ن + ف + ط (و ـــ نفت).

**نفوذ** :- (نُ + فو + ذ) (ع، اس، مذ) نافذ کېدنه سرایت کؤنه، اثر، جذب کېدنه.

**ــــ پیدا کېدل** :- اثر پېدا کېدل، تاثر پېدا کول، د سرایت کولو خاصیت یا قوت پېدا کول.

**ــــ کول** :- په کوم څیز کښې سرایت کول، په کوم څیز اثر کول.

**ــــ موندل** :- سرایت کول، اثر کول، په کوم څیز کښې جذب کېدل.

**تر ـــ لاندې نیول** :- د اثر تر لاندې نیول. په اثر کښې راوستل.

**د ـــ څښتن** :- (د ـــ (ت) س + خ/ش + ت + ن) (عپ تر، اس، مذ، ج ـــ ان) د اثر خاوند، مخوریز سړے.

**نفوذي** :- (ن + فو + ذي) (عف، تر، صف) نفوذ سره تعلق لرونکے، نفوذ ته منسوب. نفوذ لرونکے، اثر کوونکے.

**نفور** :- (ن + فو + ر) (ع، اس، فا) نفرت کوونکے، کرکه کوونکے، نۀ خوښوونکے. لرې کېدونکے، تښتېدونکے، ویزاره کېدونکے.

**ــــ کېدل** :- نفرت ځنې کول، کرکه ځنې کول، ځنې تښتېدل، ویزاره کېدل

**نفوس** :- (ن + فو + س) (ع، اس، ج) د ,, نفس،، جمع ده. خلق، وګړي، هستي، روحونه.

**ــــ شماري** :- (ـــ شُ + ما + ري) (عف، تر، اس، مو) د خلقو شمېرنه، مردم شماري.

**نفوسو** :- (نُ + فو + سو) د ,, نفوس،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**د ـــ اکثریت** :- (د ـــا + ک + ث + ري + ت).

**د ـــ ډېرښت** :- (د ـــ ډې + ر + خ/ش + ت) د خلقو اکثریت، د کسانو ډېر والے، د خلقو ګڼه (ګڼه).

**نفیس** :- (ن + في + س) (ع، صف، مذ، مو ـــ ه) نفاست لرونکے، پاکیزه، ښکلے، غوره، ښۀ، عمده. د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي.

**ــــ صنائع** :- (ـــ ص + نا + ئې + ع) (عف تر، اس، ج) هغه صنعتونه کوم چې نفیس (غوره یا لطیف) ګڼلے شي. فنون لطیفه.

**نفیسه** :- (ن + في + سَ) د ,, نفیس،، تانیث دے.

**صنائع ــــ** :- (ص + نا + ئې + ع ـــ) (ف تر، اس، ج) نفیس صنعتونه، نازک صنعتونه.

**نفي** :- (ن + في) (ع، حرف) د ,, هو،، (اثبات) ضد، نه، انکار، منفي، مخفف دے.

**ــــ اثبات** :- (ـــا + ث + با + ت) (ع، تر، اس، مذ) کلمه د لااله الاالله ته کلمه د نفي اثبات وائي. ځکه چې په دې کښې په اول سر کښې (لااله) نفي ده او بیا الاالله اثبات دے.

نفي اثبـــات مدام په لاس تېرۀ خنجر ونیسه
رسۍ محکمه د صاف دین د پېغمبر ونیسه (حافظ)

**ــــ کول** :- منفي کول، د یو (لوے) رقم څخه بل (لږ) رقم لرې (منها) کول، منفي ګرځول، لکه د ,, نه،، تورے مثبت فعل نفي کوي.

**په ـــ کښې جواب ورکول** :- انکار کول، نۀ منل، ,, نا،، کول.

**په ـــ کښې سرخوزول** :- د انکار اشاره ورکول، انکار کول، نا کول.

**په ـــ کېږي** :- (پ ـــ کې)(عپ، تر، تف) په انکار کېږي، د انکار په صورت کېږي.

**د ـــ ادات** :- (د ـــ ا + دا + ت)(عپ،تر،اس، ج) هغه توري چې د انکار معنې ورکوي لکه : نه ، مه.

**د ـــ علامت** :- (د ـــ ع + لا= م + ت)(عپ،تر،مذ) په رياضي کښې هغه علامت چې د يو رقم نه د بل رقم د لرې (منها) کولو معنې ورکوي . لکه : ۸ – ۲ = ۶ .

**نفس** :- (ن + ف + س)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ځان ، ذات ، روح ، ګېډه ، خېټه.

د ماهي په نفس کېږي پروت يونس ثناوي
خـاص بنده په بلا خوښ حامد ذاکر شي (حافظ)

**نفسا نفسي** :- (ن+ ف + سا + ن + ف + سي)(عف ،تر، تف) ځانه ځاني ، هر چا سره خپل فکر او غم ,, بودنه ،، خود غرضي.

**نفساني** :- (ن +ف + سا + ني)(عف تر ،اس، صف) نفس سره تعلق لرونکے ، نفس ته منسوب. د زړۀ د خوښې.

**ـــ تجزيه** :- (ـــ ت +ج + زي + يَ)(عف تر ، اس ، مو) نفسياتي تجزيه ، د بني ادم د ذهني محرکاتو او د اعمالو جاج اخستنه.

**نفسانيات** :- (ن+ف + س+ نِ+ يا + ت)(ع ، اس ، ج) هغه علم چې نفساني خبرو سره تعلق لري.

**ـــ مقاصد** :- (ـــ م + قا + ص + د)(عپ ،تر ، اس ، ج) د نفسي متعلق ، مقصدونه ، ذاتي غرضونه.

**ـــ يار** :- (ـــ يا + ر) هغه ياران يا ملګري چې نفساني خواهشاتو پسې ځي.

چې فتنې ترې پېدا کېږي واړه نفس دے
نفساني يـــاران بـــه نــــۀ وي بې بلا (خوشحال)

**نفسي نفسي** :- (ن+ف + سي + ن+ ف + سي)(ع ، تر ، اس) زما نفس ،زما نفس ، زما ځان ، زما ځان ، دقيامت ورځ ، حال ته اشاره ده چې هر سړے به نفسي نفسي وائي .يعنې هر چا سره به خپل غم لګېدلے وي (مجازاً) بد حال ، داسې حال چې هر سړے په خپل غم اخته وي .د بل چا فکر ورسره نۀ وي.

اولياء کــــه انبيـــاء دي
په نفسي نفسي ګويا وي (حافظ)

**نفسيت** :- (ن + ف+ سي + ي + ت) نفس سره تعلق لرنه.

**نفع** :- (ن + ف + ع)(ع ،اس ، مو ، ج ـــ عې) ګټه ، فائده.

**ـــ اخيستل** :- ګټه اخيستل ، فائده اخيستل.

**ـــ او ضرر** :- (او + ض + ر + ر)(عپ ،تر، اس ،مذ) ګټه او نقصان يا ضرر.

**ـــ او نقصان** :- (ـــ او + ن + ق + صا + ن)(عپ ،تر،اس،مذ) ګټه او تاوان.

**ـــ دوست** :- (ـــ دو + س + ت)(عف ،تر، صف ، مذ ،مو ـــ ه) نفع خوښوونکے ، د ګټې يار.

**ـــ رسان** :- (ـــ ر + سا + ن)(ف تر،صف ، مذ، مو ـــ ه) نفع رسېدونکے ، ګټه يا فائده رسوونکے.

جاري رود و نفع رسا شه
دغــه خوئي دے محترم (حافظ)

**ـــ کول** :- ګټه کول ، فائده اخيستل.

**ـــ لرل** :- ګټه لرل ، ګټه ور ,, بودل،، فائده لرل.

**خالصه ـــ** :- (خا + ل + ص ـــ)(عف ، تر ، اس ، مو) هغه ګټه چې هر قسم اخراجات ترې لرې کړے شوے وي.(انګ : نېټ پرافټ).

**نفعه** :- ن + ف + عَ/فه)(عپ ، تر ، اس ، مو)(و ـــ نفع).

**نفقه** :-(نَ + ف + قَ)(ع ،اس ،مو ، ج ـــ قې) د ډوډۍ جامې خرڅې ،د بال بچ خرڅ ، دکور يا د اولاد خرڅونه.

**ـــ اخيستل** :- د خاوند نه خرڅ خوراک وصولول ، (چې شرعاً د ښځې په خپل خاوند حق دے).

**د ـــ دعوٰی کول** :- د ښځې په خپل خاوند باندې په عدالت کښې د خرڅ خوراک دعوٰی کول.

**نان ـــ** :- (نا + ن ـــ)(عف ، تر ، اس ، مو) د ډوډۍ جامې وغېره خرڅ ، د بال بچ خرڅ ، د کور خرڅ.

**ـــ ورکول** :- د خاوند خپلې ښځې له د ډوډۍ جامې خرڅ ورکول.

**نفقې** :-(ن + ف + قې)د ,, نفقه ،، جمع ده .د نفقه بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره استعمالېږي.

**د ـــ وسيلې** :- (د ـــ و + سي + لې)(عپ ،تر،اس،ج)د ډوډۍ جامې يعنې د کور د خرڅ خوراک ذريعې.

**نفل** :- (ن + ف + ل)(ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه) هغه عبادت يا د نمونځ رکعتونه چې شرعاً فرض نۀ وي.هسې د ثواب دپاره کولے شي.(د واحد په صورت کښې د ,,ف،، زورکي سره وئيلے شي خو په جمع کښې د اصل په کسان غړوندي سره وئيلے شي).

**ـــ کول** :- د ثواب دپاره رکعتونه ادا کول.

**نفير** :- (ن + فې + ر)(ع ، اس ، مذ) نفرت کوونکے ، کرکه کوونکے ، نه خوښوونکے ، کراهت کوونکے.

**نفير** :-(ددغه)(ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) شپېلۍ. هغه شپېلۍ شان کوم چې د اودۀ سړي له خولې اوځي.سُرنا ، ترۍ ، شهنائي.الغوزه.

**نقاب** :-(ن + قا + ب) د مخ پرده.

**ـــ پورته کول** :- د مخ نه پرده لرې کول ، مخ ښکاره کول.

**ـــ په مخ اچول** :- مخ په پرده کېږي پټول.

**نقّاد** :- (ن + ق +قا + د)(ع ، اس ،فا ،ج ـــ ان) تنقيد کوونکے ، کره کوټه کتونکے،جاج اخيستونکے ، ښۀ او بد ښکاره کوونکے.

**نقّادي** :-(ن + ق + قا + دي)(عف،تر،اس ،مو) تنقيد کونه ، کره کوټه معلومونه ښۀ او بد ښکاره کونه ، تبصره کونه تنقيد ، صرافي.

**نقاره** :-(ن + قا + ر)(ف ،اس ،مو ، ج ـــ رې) نغاره ، ډنډوره ، (د ,, نقاره ،، نور الفاظ د ,,نغاره،، تر لاندې وګورئ).

**ـــ کول** :- نغاره غږول ، نغاره وهل.

**نقارچي** :- (ن + قا + ر + چي)(ف،اس،مذ ،ج ـــ ان) نغارچي ، نغاره غږوونکې.

**نقّاش** :-(ن + ق + قا + ش)(ع، اس ، مذ ، ج ـــ ان) نقش يا نقشونه جوړوونکے ، نقش او انځورونه جوړوونکے .مصور.

د هغـــه نقاش پـــه صنع نظر نۀ کا
چې له ځۀ ځاځکي نه دا نقش طراز کا (خوشحال)

**ـــ خانه** :- (ـــ خا + نَ)(عف ، تر ، اس ، مو ، ج ـــ نې) نګار خانه ،هغه ځاے چېرته چې يو نقاش يا مصور خپل نقشونه وغېره جوړوي .يا ئې نمائش کوي

**نقّاشي** :- (ن + ق +قا + شي)(عف ،تر ، اس ، مو) د نقش جوړولو کار ، نقش نګاري ، نقش سازي ، انځورونه جوړونه ، مصوري.

**دېوالي ـــ** :- (دے + وا + لي ـــ)(فپ ، تر،اس ،مو) هغه نقش نګار کوم چې په دېوالونو باندې کولے شي.د دېوال مصوري.

**ـــ کول** :- نقش يا نقشونه جوړول ، مصوري کول ، نقش و نګار جوړول.

**ـــ کېدل** :- د نقش و نګار کار کېدل ، مصوري کېدل ، نقشونه او انځورونه جوړېدل.

**ـــ ازل** :- (ـــ (ش) ا + ز + ل) (ف،تر،اس،مذ) خدا ے پاک.

**نقاضت** :- (ن + قا + ض + ت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) خفګان ، کدورت ، رنجش.

**ـــ کول ،چاسره** :- دچا سره د کدورت نه کار اخستل ، خفګان کول ، رنجش پيدا کول.

**نقاط** :- (ن +قا + ط) (ع ، اس ، ج) د ,, نقطه ،، جمع ده ، نقطې ، ټکي.

**نقاهت** :- (ن + قا + هـ + ت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) کمزوري، ضعف، ضعيفي ، ناتواني ،(خصوصاً هغه کمزوري چې د ناجوړتيا نه / څخه پيدا شي).

**نقائص** :- (ن + قا + ئي + ص) (ع ، اس ،ج) د ,, نقيصه ،، جمع ده ، نقصونه ، کمے ، عيبونه.

**نقائض** :- (ن + قا + ئي + ض) (ع،اس،ج) د ,, نقيضه ،، جمع ده.

**نقب** :- (ن + ق + ب) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) کنډر ، سورے ، سرنګ ، په دېوال کښې لوے سورے ، (نوې معنې) سرنګ ، د سمندر سرنګ.

**ـــ لګول** :- کنډر کول ، د کوټې په دېوال کښې سورے کول (خصوصاً د غلا يا د حملې په غرض د ورننه وتلو دپاره).

**ـــ زن** :- (ـــ ز + ن) (عف ، تر ،اس ، مذ ، ج ـــ ان) کنډر کوونکے ، د کوټې يا د قلا په دېوال کښې سورے کوونکے ، غل.

**ـــ زني** :- (ـــ ز + ني) (عف ، تر ، اس ، مو) کنډر کونه ، دېوال کښې سورے کونه ، غلا کونه ، غلا.

**ـــ آچول** :-

**ـــ غورزول** :- (و ـــ نقب لګول) په سمندر کښې بارودي سرنګ خورول.

**ـــ اچوونکے** :- (ـــ ا + چ + وو + ن + کے) (عپ تر ،اس ،فا ،مذ ،ج ـــ کي) بارودي سرنګ خوروونکي.

**ـــ آچوونکے بېړۍ** :- (عپ ، تر ، اس ، مو) هغه بېړۍ يا جهاز چې په سمندر کښې بارودي سرنګونه خوروي.

**ـــ اخيستونکے** :- (ـــ ا+ خ + س + تو+ ن+ کے) د سمندر نه / څخه بارودي سرنګونه ټولوونکے.

**نقد** :- (ن + ق + د) (ع ،اس ،مذ ،مو ـــ ه) نغد ،روک ، هغه رقم چې مخې سره ادا کړے شي. کره کوټه معلومونه ، تنقيد ، جاج ، د سرو سپينو سکې ، مال ، سرمايه (چې په لاس کښې وي).

**ـــ نسيا کول** : نقد رقم څخه پور جوړول ، په لاس راتلونکے څيز بل وخت ته اړول

**ـــ دجنس** :- (ـــ (دو) + ج + ن + س) (عف تر ،اس ،مذ) نغدې روپۍ او د مال په شکل کښې ټول مال دولت.

**په ـــ ډول** :- نغد ،مخې سره قيمت ورکونه.

**نقدي** :- (ن + ق + دي) (عف ، تر ، اس ، مو) نغد رقم ، نغدې روپۍ ، د سرو سپينو د سکو په شکل کښې ، نغده سرمايه.

**نقرس** :- (ن + ق + ر + س) (ع ، اس ، مذ) يو قسم مرض دے. (هـ ـــ ګنټهيا) هغه درد چې د پښو په کټه ګوته کښې وي.

**نقره** :- (نُ + ق + ر) (ع ، اس مو) سپين زر ، چاندي .د سپين رنګ څيز .د سپين رنګ اس.

**نقرئ** :- (نُ + ق + ر + يى) (عف،تر،صف) د سپينو زرو سره متعلق ، سپينو زرو ته منسوب. د سپينو زرو نه / څخه جوړ شوے .د سپينو زرو د رنګ ، سپين

**نقش** :- (ن + ق + ش) (ع ، مذ ، ج ـــ ونه / نقوش) نګار ،انځور ، صورت ، تصوير ،شبيه ، چاپ ، ټاپه . نشان ، تعويز ،اثر، تاثير ، رعب ،جادو ، ټوپه ، ټاپه ، ليکلے شوے تحرير. کنستلے شوے خط يا انځور وغيره.

**ـــ بندي** :- (ـــ ب + ن + دي) (ف تر،اس،مو) نقاشي ، مصوري ، د خواجه بهاؤ الدين لقب ، د خواجه بهاؤ الدين مريد .

**ـــ بنديه** : (ـــ ب + ن + دي + يَ) (ف تر ، اس ، مو) د صوفيانو يوه سلسله ده. چې د خواجه بهاؤ الدين نقشبند مريدان دي.

**ـــ کېدل، په زړۀ کښې / باندې** :- په زړۀ کښې کلک ليکلے کېدل ، جوړېدل يا کنستلے کېدل ، مجازاً تل ياد پاتې کېدل.

**ـــ کول** :- کلک ، ليک کول يا په کاڼي وغيره کنستل .تصوير ، ګلونه ، انځور وغيره ليکل يا جوړول.

**ـــ کېدل** :- صورت ، شکل يا انځور وغيره کلک ليکلے کېدل يا کنستلے کېدل

**ـــ کېدل، په مغزو / مزغو کښې** :- (و ـــ په زړۀ کښې (کښې) نقش کېدل).

**ـــ راښکل** :- صورت ، شبيه يا انځور وغيره جوړول.

**ـــ ساز** :- (ـــ سا + ز) (و ـــ نقش ګر).

**ـــ ليکل** :- تعويذ ليکل.

**ـــ کار** :- (ـــ کا +ر) (ف تر ،اس ، مذ ، ج ـــ ان) د نقش کار کوونکے ، په کپړه کاغذ يا په دېوال تصويرونه ګلونه انځورنه وغيره جوړوونکے .

**ـــ کاري** :- (ـــ کا + ري) (ف تر ،اس،مو) نقش و نګار جوړول ، ګلونه انځورونه يا صورتونه جوړول.

**ـــ کاري کول** :- نقش و نګار جوړول ، په کپړه کاغذ يا دېوال وغيره ګلونه بوټي انځورونه يا صورتونه جوړول.

**ـــ ګر** :- (ـــ ګ + ر) (ف تر ، صف،اس ، مذ ، ج ـــ ان) نقاش ، مصور .

**ـــ ګره** :- (ـــ ګ + رَ) (ف تر ،اس،مو،ج ـــ رې) د ,, نقش ګر ،، تانيث دے .

**ـــ و نګار** :- (ـــ (شو) ن+ ګا + ر) (ف تر ، اس ، ج) د دواړه لفظو معنې تقريباً يو شان دي. نقشونه ، ګلونه انځورونه يا صورتونه چې په کاغذ ، کپړه يا دېوال جوړ شوے وي.

**ـــ و طراز کول** :- نقش او نګار ، ښکلے صورت او نقش.

د هغـــۀ نقاش پـــه صنع نظـــر نۀ کا

چې له څۀ څاڅکي نه دا نقش و طراز کا (خوشحال)

**ـــ به آب** :- (ـــ ب + آ + ب).

**په اوبو ـــ** :- (پ + اوبو ـــ) (عپ تر ، اس ، مذ) په اوبو باندې نقش نۀ جوړېږي او که څۀ جوړ هم شي نو زر وران شي. مجازاً نۀ پاتې کېدونکے څيز ، بې ثبات ، باطل ، بې حاصل.

**ـــ بر ديوار** :- (ب + ر + دي + وا + ر).

**د ديوال ـــ** :- (د ، دي ، وا + ل ـــ) (عپ ، تر ،اس،مذ) د ديوال د نقش په شان چپ او بې حرکته. مجازاً حېران ، حق بق.

**ـــ پا** :- (ـــ (ش) + پا) (ف تر ،اس ،مذ) د پښې / خپې نقش ، د پښې خاپ ، د قدم نخښه ، سراغ ، پته.

**ـــ کښېناستل** :- مجازاً : اثر کېدل ، متاثره کېدل ، رعب کښېناستل.

**ـــ دار** :- (ـــ دا +ر) (ف تر ،صف ، مذ ، مو ـــ ه) نقش واله ، هغه کپړه وغيره چې نقش و نګار پرې شوې وي.

**ـــ طراز** :- (ـــ ط + را + ز) (و ـــ نقش ګر).

**ـــ قدم** :- (ـــ ق + د + م) (و ـــ نقش پا) .

**نقشبنديه** :- (ن + ق+ش + ب + ن + د/دي+ يَ) (عف،تر،اس) د صوفيانو يوه

سلسله ، کومه چې د خواجه بهاؤ الدین نقشبندي نه/ څخه روانه شوې ده

**نقشه**:- (ن + ق + شَ)(عف تر ،اس ، مو ، ج ــ شې) تصویر ، څېره ، صورت ، شکل و شباهت ، وضع قطع ، ساخت ، جوړښت ، ساخت ، خاکه ، نمونه ، مثال ـ حالت ، کیفیت ، په کاغذ یا په دیوال وغېره هغه نقش چې د یوې علاقې یا د ملک د زمکې حالات (د کلي ، لارې ، سیندونه ، نهرونه غرونه وغېره) په کښې ښودلے شوي وي ـ

**ـــ جوړول**:- د کومې علاقې یا د ملک داسې خاکه راښکل چې په کښې کلي ، ولې، نهرونه ، سیندونه او غرونه وغېره ښکاره کړے شوي وي ـ خاکه راښکل ، نمونه جوړول ـ

**ـــ کش**:- (ـــ ک + ش)(ف تر ،اس،مذ ،ج ـــ ان) نقشه راښکونکے ، نقشه جوړوونکے ،د زمکې خاکه جوړوونکے ـ

**ـــ کشي**:- (ـــ ک + شي) (ف تر ،اس ، مو) نقشه راښکته ، نقشه یا نقشې جوړونه ـ د یوې علاقې یا د ملک نقشه جوړونه ، چې په کښې ددغې خاورې کلي ښارېې دریابونه ، غرونه وغېره ښودلے شي ـ په مدرسو کښې جغرافیې سره تړلے مضمون دے ـ

**ـــ کښ**:- (و ـــ نقشه کش) ـ

**ـــ کښي**:- (و ـــ نقشه کشي) ـ

**ـــ کالحجر**:- (ـــ ک + ل + ح + ج + ر)(ع ، تر ، اس ، مذ)د کاڼي په شان نقش ـ مجازاً: پوخ ، نهٔ ورانېدونکے نقش ، د کاڼي کرښې ـ (اصل محاوره ,, کالنقش في الحجر ،، ده) ـ

**ـــ راښکل**:- تصویر راښکل ـ داسې حال بیانول چې ددغې واقعې منظر په ذهن کښې جوړ نشي ـ

**ـــ بدلېدل**:- د کوم ځاے زوړ حالت نهٔ پاتې کېدل حالت په بل رنګ کېدل ـ

**ـــ بدلول**:- د کوم ځاے حالت بېخي بدلول ، بېخي په بل حالت کښې راوستل ـ ډېر بدلون (په څهٔ کښې) راوستل ـ

**ـــ کش**:- (ـــ ک + ش)(ف،تر صف ، مذ ، مو ـــ ه) نقشه راښکونکے ، نقاش ، مصور ،نقشه جوړوونکے ، ډرافټ مېن ـ

**ـــ نویس**:-(ـــ ن + وي + س)(و ـــ نقشه کش) ـ

**نقشي**:- (ن + ق + شي)(عف ، تر ، صف) نقش سره تعلق لرونکے ، نقش ته منسوب ـ نقش واله ، منقش ، هغه کپړه وغېره چې نقشونه ، ګلونه بوټي وغېره پرې جوړ شوي وي ـ

**نقشې**:-(ن + ق + شې) د ,, نقشه ،، جمع ده ـ د ,,نقشه ،، بدل شکل دے ـ چې د مغیره ؤ تورو سره راځي ـ

**د ـــ مطابق**:- (د ـــ م + طا + ب + ق)(فپ ،تر ، تف) چې څنګه نقشه جوړه شوې ده ـ دغې نقشې سره سم (څهٔ څیز یا عمارت وغېره جوړونه) ـ

**نقص**:- (نُ + ق + ص) نقصان ، کمے ـ

**ـــ رسول ، چاته**:- نقصان رسول ، کمے وروستل ـ

**ـــ کول**:- نقصان کول ، تاوان کول ـ (د فائدې یا نفعې ضد) ـ

**ـــ په ګوته کول**:- عېب ښکاره کول ، بدوالے ګرګندول ـ

**ـــ لرل**:- عېب لرل ، بد والے لرل ـ

**ـــ والا**:- (ـــ وا + لَ)(عپ تر ،صف) عېب واله ، عېب جن ـ

**ـــ لټول**:- عېب لټول ، عېب جوئي کول ـ

**ـــ ایستل / اباسل / وښکل**:- عېب په ګوته کول ، عېب لټول ، عېب جوئي کول ـ

**نقصان**:- (نُ + ق + صا + ن)(ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه) تاوان ، د کوم څیز کم قیمت وصولیدنه ـ ډنډ ـ کمے ، کماوښت ، نقص خلل ، خرابے ، فتور ـ

**ـــ کول**:- تاوان کول ، کوم څیز د اصل قیمت نه / څخه په کم قیمت خرڅېدل ، تاواني کېدل ـ

**ـــ کول ،دچا**:- چاته نقصان رسول ، زیان رسول ، چاته تاوان رسه ول ـ

**ـــ کېدل**:- تاوان کېدل ،مال وغېره د اصل قیمت نه / څخه په کم قیمت خرڅېدل زیان کېدل ، تاواني کېدل ـ

**نقض**:- (ن + ق + ض)(ع ،اس ، مذ ، ج ـــ ونه /نقائض) ماتونه ، ماتول راماتول ، ورانے ـ

**ـــ امن**:- (ـــ (ض) + ا + م + ن)(عف ، تر ، اس ، مذ) د امن ماتونه ، بد امني پېدا کونه ، فساد پېدا کونه ، فساد ، جګړه ، شر و شور ـ

**ـــ عهد**:- (ـــ (ض) + ع + هـ + د)(عف ،تر ،اس ،مذ) عهد ماتونه ، عهد شکني کونه ، د لوظ قول خلاف عمل ، عهد شکني بې لوظي ـ

**نقضول**:- (ن + ق + ض + ؤ + ل)(مص) ماتول ، خلاف عمل کول ـ

**نقط**:- (نُ + ق + ط)(ع ، اس ، ج) د ,, نقطه ،، جمع ده ، نقطې ، ټکي ـ

**نقطه**:- ن + ق + طَ)(ع، اس،مو، ج ـ طې /نقاط) ټکے ، خال ، وړوکې شان نخښه ـ چې د تورو د پاسه یا لاندې لګولے شي ـ مرکزي ځاے ، مرکز ، مجازاً: اعتراض ، عېب ـ

**ـــ نظر**:- (ـــ (ئې) ن + ظ + ر)(عف ، تر،اس،مو) هغه نقطه یا ټکے یا ځاے چې په نظر کښې ساتلے شي ـ خیال ، عقیده ـ

**ـــ انجماد**:- (ـــ (ئې) ا + ن + ج + ما+د)(عف،تر،اس ، مو) د ترمامیټر هغه درجه چې اوبهٔ پرې واوره کېږي ـ د اوبو د واوره کېدلو درجه ـ

**ـــ په نقطه**:- (ـــ پ ، نُ + ق + طَ)(عپ ،تر،تف) ټکي په ټکي ، حرف په حرف ، ټول ، همه ـ

**د ایشېدو/ یشېدو ـــ**:- د ترمامیټر هغه درجه چې د اوبو د یشېدلو په وخت پاره ور رسي ـ

**ـــ دار**:- (ـــ دا+ر)(ف تر ،صف،مذ ،مو ـــ ه) نقطه لرونکے ، ټکي واله ـ

**نقل**:- (ن + ق + ل)(ع ،اس ، مذ ، ج ـــ ونه / نقول) د یو ځاے نه / څخه بل ځاے ته تلنه یا وړنه ـ چربه ، کاپي ـ نمونه ، نظیر ـ روایت ، قیصه ـ د یو توري (حرف) حرکت بل توري ته وراړول ـ

**ـــ مکان**:- (ـــ (ل) + م + کا + ن)(عف تر ، اس ، مذ) د یو ځاے نه / څخه بل ځاے ته تلنه ، کور بدلول ـ د یو کور څخه بل کور ته تلل ـ

**نقلاً**:- (ن + ق + ل + ن)(ع،تف) د نقل په طور ، روایتاً ، د اورېد خبره ـ

**نقلچي**:-(ن + ق + ل + چي)(عف ،تر،اس،ج ـــ ان) نقل کوونکے ، پېښې کوونکے ، نقال نقل کوونکے ـ په امتحان کښې د کتاب وغېره څخه جواب لیکونه ـ

**نقلول**:- (ن + ق + ل + ؤ + ل)(و ـــ نقل کول) ـ

**نقلېدل**:- (ن + ق + لې + د + ل)(و ـــ نقل کېدل) ـ

**نقلي**:-(ن + ق + لي)(عپ ،تر ، صف) هغه څیز چې د بل څیز په شان جوړ کړے شوي وي ـ غېر اصلي کوټه ، جعلي ـ نقل کوونکے ، پېښې کوونکے ، ټوقې ټقالې کوونکے ، مسخره ، روایتي ، په روایت کښې بیان شوے ـ لکه: نقلي قول ـ د یو ځاے څخه بل ځاے ته د وړلو متعلق ، د ټرانسپورټ متعلق ـ

**نقلیات**:- (ن + ق + ل / لي + یا + ت)(ع ، اس ، مذ) نقلیه جمع ده ـ نقل شوي بیانونه یا لیکونه روایتونه د تګ راتګ یا د وړلو راوړلو متعلق ـ

**نقلیاتي**:- (ن +ق + ل + یا + تي)(عف ، تر ، صف) نقلیات سره تعلق لرونکے ، نقلیاتو ته منسوب ـ

**نقلیه**:- (ن + ق + لي + يَ)(ع ، صف) نقل (د یو ځاے نه څخه بل ځاے ته وړلو) سره متعلق ـ د ټرانسپورټ سره متعلق ، د تګ راتګ متعلق ـ روایتي ـ

**نقلیې**:- (ن + ق + ل + یې) د ,, نقلیه ،، جمع ده ـ د ,, نقلیه،، بدل شکل چې د

مغیره ؤ تورو سره راځي۔

**د ـــــ مصرف** :- د ـــــ م+ص + ر + ف ) ( عـپ تر ،اس ،مذ ،ج ـــ مصارف ) د سامان د یو ځای نه بل ځای ته د وړلو خرڅ ۔ د ټرانسپورټ خرڅ ۔

**نقمت** :- ( ن + ق + م + ت ) ( ع ،اس ، مذ ) عذاب ، کینه ، بغض ، عداوت ۔

رب چې خپل حُب د بنده په زړهٔ کښې کښېښود
پـــه نقمت نعمت تــرې نــهٔ ځـــي مستقر شي ( حافظ )

**نقود** :- ( ن + قو + د ) ( ع ،اس ، ج ) د ,, نقد ،، جمع ده ۔

**نقوش** :( نُ + قو + ش ) ( ع ، اس ، ج ) د ,, نقش ،، جمع ده ۔

**نقول** :- ( نُ + قو + ل ) د ,, نقل ،، جمع ده ، نقلونه ۔

**نقي** :- ( ن + قي ) ( ع ، صف ) پاک ، صفا ، ستره ، خالص ، د حضرت علي بن محمد ( د شیعه گانو لسم امام ) لقب ۔

**نقیـب** :- ( ن + قـي+ب ) ( ع، اس ، مـذ ، ج ـــــ ان ) مشـهوروونکی ، شـهرت ورکوونکی ، منـادي کوونکی ۔ د خلقو د خاندانونو د شجرو او د هغوی د خپلو حالاتو څخه خبردار سړی ۔ د بادشاهانو د سورلۍ نه /څخه وړاندې وړاندې تلونکی او نعرې لګوونکی ۔ مدحې ویونکی ۔

**نقیبه** :- ( ن + قي + به ) ( ع ، صف ،مذ ،مو ــ ه ) کمزوری ، ضعیف ،ناتوانه ۔

**نقیصـه** :- ( ن + قـي + صَ ) ( ع ، اس ،مـو ، ج ـــ صـې / نقائص ) عېـب ، نقـص ، کمی ، خرابی ۔

**ـــــ لرې کول** :- نقص لرې کول ، عېب لرې کول ۔

**نقیض** :- ( ن + قي + ض ) ( ع ، اس ، صف ، مذ ، مـو ـــ ه ) رد کـوونکی ، عکس ، ضد ، التیه ۔ ( طب ) د کوم څیز اثر ورکونکی یا نفي کوونکی ۔ ( منطق ) د یـو څیز رفع کول یا ئې نفي کول ۔

**نقیضه** :- ( ن + قي + ضَ ) ( ع،اس،مو،ج ـــ ضې ) د ,, نقیض ،، تانیث دی ۔

**نکـات** :- ( ن + کـا + ت ) ( ع ، اس ، مـو ، ج ) د ,, نکتـه ،، جمـع ده ۔نکتـې ۔ باریکی ، باریکیانې ۔ هغـه خبرې کومې چې د هر چا پـه پوهـه کښې نـهٔ راځي ۔ ( د نون پېښ سره غلط العام دی چې د نُکته په قیاس وایهٔ شي ) ۔

**نکاح** :- ( ن / ني + کـا + ح ) ( ع ،اس ،مذ ، ج ـــ ونه ) عقد ، د جینۍ او هلک د ښځې او خاوند په حېث تړون ۔ اسلامي طریقه چې د نکاح تړونکي مُلا د هلک او جینۍ نه / څخه د تپوس نه وروستو دواړه د ښځه او خاوند پـه حېث تسلیم کړے شي ۔

**ـــ کول** :- د سړي ښځې سره ، یا د ښځې سړي سره د وادهٔ عقد کـول ، وادهٔ کول ۔

**د ـــ پلار** :- ( د ـــ پ + لا+ ر ) ( ع ،پ تر ،اس ، مذ ) د جینۍ هغـه نزدې رشته دار څوک چې د نکاح په وخت د جینۍ د پلار رول ادا کوي ۔

**په ـــ کښې اخیستل** :- چاسره نکاح کول ،عقد کول ،وادهٔ کول ۔

**په ـــ ورکول** :- د جینۍ هلک ته په نکاح کول ، د جینۍ وادهٔ کول ۔

**ـــ تـړل** :- عقد کـول ، د ښځې او خاوند پـه حېث د یـو ځـای کېـدو شرعي دستوره ادا کول لکه : مُلا ئې نکاح وتړله ۔

**ـــ تړل، چا سره** :- چا سره عقد کـول ، چا سره وادهٔ کول،چاته ( د جینۍ یـا ښځې ) ودېدل ۔ ( طنزاً ) چا سره هر وخت یو ځای اوسېدل ۔

**ـــ نامه** :- ( ـــ نا + مَ ) ( عـف تر ، اس ، مـو ، ج ـــ مې ) هغه کاغذ پـه کوم چې د هلک جینۍ د نکاح په حقله کوائف درج وي او دواړو پرې دستخط کړے وي ۔

**نکاحانه** :- ( ن + کا + حا + نَ ) ( عف ،تر ، تف ) د نکاح په طور ، د نکاح په انداز

**ـــ وال** :- ( ـــ وا +ل ) ( عپ ،تر ،اس ،مذ ) هغه چې نکاح ئې شوې وي ۔

**نکاره** :- ( ن+کا+رَ ) ( پ تر ،صف ) د ,, ناکاره ،، بدل شکل دی ۔

**نکـاري** :- ( ن + کـا + ري ) ( پ تر ،اس،مـو ) د ,,ناکـاري ،، بـدل شـکل دی ۔ ناکاروالی ، بدي ۔

**ـــ کول** :- ناکاري کول ، بدکاري کول ، خراب کار کول ۔زنا کول ۔

**نکال** :- ( ن + کا + ل ) ( ع ، اس ، مذ ) عذاب ، تکلیف ، عقوبت ۔

**نکان** :- ( نُ + نو + کا + ن ) ( اس ، مذ ، ج ) د ,, نوک ،، جمع ده ، نوکونه ۔

**نکبت** :- ( ن + ک + ب + ت ) ( ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) غریبي ، خواري ، افلاس ، تنگ لاسي ۔

**نکتـه** :- ( نُ + ک + تَ ) ( ع ، اس ، مـو ، ج ـــ تـې ) بـاریکي ، باریکـه خبـره ۔ داسې خبره چې پـه اسانه یا د هر چا پـه پوهه کښې نـهٔ راځي ۔ لطیفه ، د ټوقې خبره ۔ هغه څرمن کومه چې د اس په خولهٔ کښې ورکړے کېږي ۔

**ـــ پرداز** :- ( ـــ پ + ر + دا + ز ) ۔

**ـــ پـرور** :- ( ـــ پ + ر + و + ر ) ( ف تر ،صف ، مذ ، مو ـــ ه ) پـه خبرو او کلام کښې ښکلې باریکۍ وړاندې کوونکی ، خوش گفتار ،نکتـه گو ،سخنور ۔ هوښیار ، ځیرک ۔

**ـــ چین** :- ( ـــ چي + ن ) ( عف ،تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه ) عېـب لټـوونکی ، اعتراض کوونکی ،نقص لټوونکی ۔

**ـــ چیني** :- ( ـــ چي + ني ) ( عف ، تر ، اس ، مو ) عېب یا عېبونه لټونه ، اعتراض کونه ۔

**ـــ چیني کول** :- عېب پـه گوتـه کـول ، عېب ښکاره کول ، اعتراض کول ، نقص لټول ۔

**ـــ دان** :- ( ـــ دا + ن ) ( و ـــ نکته شناس ) ۔

په مکتب کښې به د علم بحث کېږي
طالبان به نکته دان وي مونږ به نهٔ یُو ( حافظ )

**ـــ رس** :- ( ـــ ر + س ) ( عف ،تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) هغـه سړی چې د خبرې باریکۍ یا پـه پټ اړخ زر پوهېږي ۔تېز فهمه ، هوښیار ۔

**ـــ سنج** :- ( ـــ س + ن + ج ) ( عف ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) هغـه سړی چې د خبرې پـه بـاریکۍ یـا پـه پټـه اشاره زر پوهېږي ۔هوښیار ، ځیـرک ، تېـز فهم ۔

**ـــ شناس** :- ( ـــ ش + نا + س ) ( عف ،تر ، صف ،مذ ،مو ـــ ه ) ( و ـــ نکته سنج )

**ـــ گو** :- ( ـــ گو ) ( و ـــ نکته پرداز ) ۔

**ـــ گیـر** :- ( ـــ گـي + ر ) ( عـف تر ،صـف،مذ ،مو ـــ ه ) عېـب لټـوونکی ، اعتراض کوونکی ، نکته چین ۔

**ـــ گیري** :- ( ـــ گي + ري ) ( عف ،تر ،اس،مو ) عېب لټونه ، اعتـراض کونـه ، نکته چیني ۔

**نکبئ** :- ( ن + ک + ب + ئ ) ( اس،مو ) کبئ ، د اس د زین قربوس ۔

**نکرځی** :- ( نُ + ک + ر + ( د ) + زی ) ( و ـــ نکریزې ) ۔

**نکروزې** :- ( ن + ک + رو + زې ) ( و ـــ نکریزې ) ۔

**نکره** :- ( ن + ک + ر ) ( ع ، اس ، مو ) نهٔ پېژندنه / پېجندنه ۔ناشناسي ۔ د اسم پـه دوه ؤ قسمونو کښې هغه قسم چې د هر څیز د نوم دپاره راځي د معرفې د اسم ضد ۔

**نکریزو** :- ( ن + ک + ري + زو ) د ,,نکریزې ،، بدل شکل چې مغیـره ؤ تـورو سره راځي ۔

که هزار لاسونه سرهٔ کړې په نکریزو
تـــا زمـــا پـه وینو وللي دي پوهېږم ( خوشحال )

**نکریزې** :- ( ن + ک + ري + ( د ) زې ) ( و ـــ نکریزې ) ۔

**ـــ پورې کول** :- په اوبو کښې خوشتې کړې نکریزې په لاسونو ، یا پـه پښـو / ښپو پورې کول چې سرهٔ شي ۔

**د ـــ شپه** :- ( د ـــ ش + پَ ) ( پ تر ،اس ، مو ) پـه وادهٔ کښـې هغـه شپـه چې د

هلک د کور زنانه په تالونو کښې خوشتې نکریزې د جینۍ کور لـه وړي او بیا د جنیی د کور زنانه هلک کره ځي.

**نکړ** :- (ن + ک + ړ) (فعل) د ,, نهٔ کړ ،، لنډیز شکل دے.

**نکړم** :-(ن + ک + ړ + م) (فعل) د ,, نهٔ کړم ،، لنډیز شکل.

**نکړي** :-(ن + ک+ړي) (فعل) د ,, نهٔ کړي ،، لنډیز شکل دے.

**نکـړي** :- (ن + ک + ړي) (هند ،صف،مو) وړه ، وړوکے (مؤنث) د هند کولفظ دے. په پښتو کښې عام نهٔ استعمالیږي.صرف یو محاوره کښې راځي. یعني نکړي نکړي کول.

**ـــــ نکړي کول** :- نکړي نکړي ویـل ، وړه وړه ویـل. مجازاً : انې بـانې کـول. (پس منظر : وائي چې پښتنو هندکیانو سره خپلوي وکړه .چې د وادهٔ غوښتلو دپاره ئې استازے ولیږله.هغه چې واپس راغلـه نو ورتـه ئې ووې چې نوره خو نهٔ یم پوئې شوې خو په خپله کښې ئې نکړي نکړي ویـل یعنې جینۍ لاوړه ده.ددې څخه دغه محاوره جوړه شوه).

**نکړئ** :-(ن + ک + ړ + ئ) (فعل) د ,, نهٔ کړئ ،، لنډیز شکل.

**نکړے** :-(ن + ک + ړے) (فعل) د ,, نهٔ کړے ،، لنډیز شکل.

**نکس** :-(ن + ک + س) (پ تر ، اس) د ,, نهٔ کس ،، لنډیز ،شکل دے .ناکس ، هېڅ سړے.

**نکل** :- (نَ+کَ+ل) (اس ، مذ ، ج ـــونه) د نقل بدل شکل.قصه ، واقعه ، روایت. (و ـــ نقل).

**ـــــ کول** :- واقعه بیانول ، قصه کول ، روایت کول.

**نکل** :- (نِ + ک + ل) (اس ، مذ ، جم) یو قسم دهات دے .چې د اوبـو نـه / څخه دروند وي.

**ـــــ کاري** :- (ـــ کا + ري) (فپ ، تر، اس ، مو) د نکـل کـار کونه ، ټوقماري ، پېښې بازي ، نخرې پېښې کونه.

**ـــــ کاري کول** :- نقل کول ، پېښې کول ، ټوقې مسخرې کـول ، د ټوقـو وشتو خبرې کول.

**نکـلاوو**:- (ن + ک + لا+ وو) (اس ،مـذ ،ج ـــ ګـان) نکـل کـوونکے ، قیصـې ویونکے ، قصه ګو. نقال ، بهروپیه.

**نکلي** :-(ن + ک+ لي) (و ـــ نقلچي).

**نکلي** :- (ن + ک + لي) (پ تر ،اس ، مذ ،ج ـــان) د ,, نقلي ،، بدل شکل دے. ټوقمار د ټوقو خبرې یا نقلونه کوونکے ، خلق خندوونکے.

**نکو** :- (نِ + کو) (ف ، سابقه) د ,, نېکو ،، لنډیز شکل دے.د سابقې په طور راځي. لکه : نکوکار.

**ـــــ کار** :- (ـــ کا + ر) (پ تر ،صف،مذ ،مو ـــ ه) ښهٔ کارونه کوونکے.

**ـــــ نام** :- (ـــ نا + م) (ف تر ،صف ، مذ ، مو ـــ ه) نېک نام لرونکے ، نېکنام

**نکه** :- (ن + کَ) (فعل) د ,, نهٔ که ،، لنډیز شکل دے.

**نکهت** :- (ن + ک + هـ +ت) (ع ، اس ، مذ) دخولې خوشبوئي ،د خولې بـوئي ، خوشبوئي. د زنانهٔ په نومونو کښې راځي.( ,,ګ ،، سره هم لیکلے او وئیلے شي خو اصلاً ,,ک ،، سره دے).

**نکهت** :- (ن + ک + هـ + ت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــونه) د ګلونو خوشبوئیں .خوشبو د ګلونو.

**نکیدهٔ** :- (ن + کې + د) (فعل) د ,, نهٔ کېدهٔ ،، لنډیز شکل دے.

**نکیر** :-(ن + کي + ر) (ع ، اس مذ) په هغو دوهٔ فرښتو کښې د یـوې فرښتې نوم، چې په قبر کښې د تازه مړي نه / څخه سوال کوي.د بلې فرښتې نوم منکر دے. په پښتو کښې ورته انکیر منکیر وائي.

**نکیـرین** :- (ن+کي+رې + ن) (ع ،اس ، تشنیـه) پـه قبر کښـې د تـازه مـړي نـه / څخه د سوال جواب دپاره راتلونکې دوه فرښتې.منکر نکیر. په پښتو کښې ورته انکیر منکیر وائي.

**نګ** :- (ن + ګ) (هـ ، اس ، مـذ ،ج ـــونه) غمـے ، هغـه قیمتـي کـانړے چې پـه ګوتو یا نورو کالو کښې لګولے شي.

**ـــــ نـګ** :- (ــــــ ن + ګ) (پ ، لاحقـه) د پښـتو لاحقـه ده .ځینـو الفـاظو نـه وروستو لګولے شي.د اسم معنې پیدا کوي. لکه : غورزنګ ، ګړ بدنګ

**نګـار** :-(ن + ګـا +ر) (ف ،اس ،مـذ ،ج ــــ ان) ښائسـته ، ښـکلے ، معشـوق ، معشوقه ، محبوب صورت ، تصویر . نقش ، انځور ، ګلونه بوټي (جوړ شوي) ښکلا ، زیبائش ، ارائش. ښکلے ، لیک. په لاس باندې په نکریزو جوړ شوي نقشونه.

**ـــــ خانه** :- (ـــ خا + ن) (ف تر ،اس،مو ،ج ـــ نې) تصویر خانه ، هغه ځاے چېرته چې د نمائش دپاره تصویرونه ، نقشونه وغېره ایښـودے شوي وي. هغه ځاے چېرته چې یو نقاش یا مصور خپـل صورتونه یا نقشونه وغېره جوړوي. د فلمونو د جوړولو ځاے .سټوډیو.

**نقش و ـــ** :- (ن + ق + شو ـــ) (و ـــ نقش و نګار).

**نګارنـده** :- (ن + ګـا + ر+ن+د ) (ف تـر ، اس ، فـا ، ج ـــ ګان) ښـکلے لیـک کوونکے ، نقش و نګار جوړوونکے. (مطلق) لیکونکے.

**نګاره** :-(ن + ګا + ر) (فپ،تر،اس ،مو،ج ـــ رې) د ,, نګار ،، تانیث دے.

ع بیا له وراېه په خندا راغله نګاره (خوشحال)

**نګـاره** :- (ن + ګـا + ر) (فـپ ، تـر ، اس ، مـو ، ج ـــ رې) د نګـار تانیـث . معشوقه ، ښکلې ښځه.

**مضـمون ـــ** :- (م + ض + مـو + ن ـــ) (عـف ، تـر ، اس ، مـو) د مضـونونو لیکلو فن.مضمون لیکنه.

**ډرامه ـــ** :- (ډ + را + مَ ـــ) (انګ ، ف تر ، اس ، مـو) د ډرامې د لیکولـو فـن ، د ډرامې لیکل.

**نګارستان** :- (ن+ګا+ر+س+تا+ن) (ف،تر،اس،مذ ،ج ــونه) (و ـــ نګارخانه).

**نګارش** :- (ن + ګا + ر + ش) (ف ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــونه) ښکلے لیک ، په ښکلې ادبي انداز کښې لیکلے شوے څیز. مطلق ، لیک ، تحریر.

**نګاړه** :- (ن+ ګا + ړ) (و ـــ نګوړ).

**نګاسه** :- (ن + ګـا + سَ) (اس ، مـو ، ج ـــ سې) نـرے اواز ، بڼ بـڼـېکے ، د بـڼ بـڼ اواز.

**نګاشے** :- (ن + ګا + شے) (اس ، مذ ، ج ـــ شي) هغه کوډ لرګے چې پـه دېوال کښې ټک وهلے شي او بیا پرې څاروي ترې یا جامې وغېره پرې زوړندوي . ننګوښے.

**نګیے** :- (ن + ګ + یے) (و ـــ نګوبے).

**نګسے** :- (ن + ګ + سے) (اس،مـذ ،ج ـــ سي) ناځیزه ، هیچکاره ، هغـه چې ټوقې ورپورې کولے شي.مضحک.

**نګاه** :- (ن + ګا + ه) (ف ،اس ،مذ ،ج ـــونه) نظر،کتنه ،توجه ، وتنه ، نظاره ، دید ،نګراني ، حفاظت.

**ـــــ بـان** :- (ــــ بـا + ن) (ف تر،اس،مـذ ،ج ـــ ان) نظرلـرونکے ، حفاظت کوونکے ، نګران ، ساتندوئے.

**ـــ باني** :- (ـــ با+ني) (ف تر،اس،مو) نګراني ، حفاظت ، ساتنه.

**ـــ باني کول** :- نګراني کول ، په نظر کښې لرل ، حفاظت کول.

**ـــ حسرت** :- (ـــ (ه) ح+ س+ ر + ت) (ف ، تر ، اس ، مذ) په داسې نظر کتنه چې حسرت او ارمان ترې ښکاره کېږي.

**ـــــ دار** :- (ـــ دا +ر) (و ـــ نګاه بان).

**ـــــ داشت** :- (ـــ دا + ش + ت) (ف،تر،اس ، مذ) په نظر کښې لرنه ، نګراني ، حفاظت.

**ـــــ شوق** :- (ـــــ (ه) شو + ق)(ف تر، اس ، مذ) په داسې نظر کتنه چې د زړۀ شوق او مینه ترې څرګندېږي.

**ـــ غلط انداز** :- (ـــ غ+ ل+ ط +ا+ن + دا +ز)(ف تر،اس ،مذ) سرسري نظر.

**ـــ کول** :- نظر کول ، کتل ، نظر اچول.

**ـــ کېدل** :- بچ ساتلے کېدل ، محفوظ کېدل ، حفاظت کېدل.

**ـــ لرل** :- نګراني کول ، په نظر کښې ساتل.

**نګر** :-(ن + ګ + ر)(هـ ، اس ، ملاحقه) ښهر ، کلے. (په پښتو کښې د لاحقې په طور لیدے شي.لکه : هشت نګر چې هشنغر ئې بدل شکل دے).

**نګر** :- (ن + ګ + ر)(اس، صوت) د مرغو چغار ، د مرغو د اوازونو شور ، د مرغانو شور فریاد.

**ـــ کول** :- د مرغو په زوره زوره چغار کول.د مرغو شور ، شار جوړول.

**نګران کول** :- کتونکے کول ، نظر لرونکے.

که دا نور عالم وبله خوا ته ګوري

ما پـه لوري د دلبرو نګران کړې　　(رحمان بابا)

**ـــ کېدل ، چا ته** :- چا ته د طمعې او امېد په نظر کتل ، د چا نه امېد یا طمع لرل.

**نګران** :- (ن + ګ + را + ن)(ف ،تر،اس،مذ ،ج ـ ان) نګاه بان ، په نظر کښې ساتونکے ، حفاظت کوونکے ، کتونکے ، محافظ ، پاسبان.

**نګراني** :- (ن + ګ + را + ني)(ف تر ، اس ، مو) په نظر کښې ساتنه ، د نظر تر لاندې لرنه ، نګاه پاني . د اپیل نه وروستو ، د مقدمې د بیا د کتنې درخواست.

**په ـــ کښې** :- (پ ـــ کښې) د ...نظر تر لاندې ، د ... په حفاظت کښې ، د ... کتنې تر لاندې.

**ـــ کول** :- په نظر کښې ساتل ، د نظر تر لاندې لرل.حفاظت کول ، نګاه باني کول. د اپیل نه پس د نګرانۍ درخواست کول.

**په ـــ کښې** :- (فپ ، تر ، تف) د چا د نظر تر لاندې ، د چا په نګهبانۍ کښې ، په حفاظت کښې.

**تر ـــ لاندې** :- (و ــ په نګرانۍ کښې).

**نګرانۍ** :- (ن + ګ + را + ن + ی) د ,نګراني، ، جمع . د ,,نګراني ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**نګراني** :- (ن + ګ + را + ني)(ف تر،اس ، مو) په نظر کښې لرنه ، نګهباني . حفاظت . د اپیل نه / څخه وروستو د اپیل په فېصله بیا د نظر اچولو درخواست.

**ـــ کول** :- په نظر کښې ساتل ، نګهباني کول ، د چا د کار په نظر کښې لرل . د اپیل نه وروستو په فېصله باندې سر دوباره د نظر اچولو درخواست کول

**نګړه** :-(ن + ګ + ړَ)(و ـــ نګوړ).

**نګړے** :-(ن + ګ + ړے)(و ـــ نګور).

**نګښے** :- (ن + ګ + خے / شے)(اس،مو) د زنانهؤ د تندي دواړو اړخونو ته کمڅۍ شوي وېښتۀ ، څڼې.

دا د عشق خواري زاري مې ده ژړلې

مور او پلار چې راته نیو رېره نګښے　　(حمید)

**نګل** :- (ن + ګ + ل)(و ـــ نړل).

**نګوبے** :- (ن + ګو + بے)(اس،مذ ،ج ــ بي) د زین په مخکښېنۍ حصه کښې لوړه حصه ، قربوس.

**نګور** :-(ن + ګو + ر)(و ـــ نړور).

**نګورے** (ن + ګو + رے)(پ تر،صف ،اس مذ ، ج ــ ري) نابینا ، ړوند.

تــر منزله تلل په تلل شي

تر منزله نۀ رسي نۀ ګوري　　(ارزاني)

**نګوړ** :- (ن + ګو + ړ)(تابع مهمل) د سوړ تابع مهمل دې چې د سوړ په معنٰی کښې شدت پېدا کوي. لکه سوړ نګوړ.

**نګوړے** :- (ن + ګو + ړے)(اس ،مذ ،ج ــ ړي) بادرنګ.

**نګوس** :- (ن + ګو + س)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) عکس ، تصویر،فلم.

**نګوښ** :- (ن + ګو + خ /ش)(اس ، مذ) ګډوالے ، ګډتیا.

**نګوښل** :- (ن + ګو + خ / ش + ل)(مص)(و ـــ نګوښېدل).

**نګوښول** :- (ن + ګو + خ/ش + ل)(مص) ګډول ،ګوډول ،ګډ / ګوډ کول.

**نګوښېدل** :- (ن + ګو + خې / شې + د +ل)(مص) ګډېدل ،ګډ / ګوډ کېدل.

**نګولے** :- (ن + ګو/ک + لے)(اس،مذ ، ج ـــ لي) سالڼ ، پخکړے،لونده بل ، لمده بل.

**نګون** :- (ن + ګو + ن)(ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) اړولے ، سر په ښکته ، اپوټه ، التهٔ زوړند سر ، پړمخے.

**ـــ بخت** :- (ـــ ب + خ + ت)(ف ،تر،صف ، مذ ، مو ــ ه) اړولے،بخت واله ، بدنصیبه ، بدبخته ، بدقسمته.

**ـــ سر** :- (ـــ س + ر).

**سر ـــ** :- (س + ر ـــ)(ف تر،صف ،مذ ، مو ــ ه) سرټیټ کړے ، سر ښکته کړے. اړولے ، اُلټه.

**ـــ کول** :- سر په ښکته کول ، سرټیټول.اړولے کول ، التهٔ کول. پړمخې کول.

**ـــ کېدل** :- سر ښکته کول ،ټیټېدل،اړولے کېدل،التهٔ کېدل ،پړمخې کېدل.

**نګونے** :- (ن + ګو + نے)(اس ،مذ ،ج ــ ني) چونګ ، پېمانه ، دومره څیز چې د یو لاس ګوتې غونډې پیاله کړے شي په هغې کښې ځاے شي.

**نګه** :- (ن + ګَ)(صف ،مو/مذ) صفا،سوچه ، بغېر د کوم ګډونه ، خالصې.

**نګه** :- (ن + ګ+ه)(ف،اس،مذ) د ,, نګاه ،، لنډیز شکل دے.

**نګهبان** :- (ن + ګ + ه + با + ن)(و ـــ نګاه بان).

**نګهباني کول** :- په نظر کښې ساتل ،نګراني کول ،حفاظت کول ، محفوظ ساتل.

**نګهداشت** :- (ن +ګ+ه+دا+ش+ت)(ف تر،اس ،مذ ، ج ـــ ونه) په نظر کښې ساتنه ، د نظر تر لاندې لرنه ، حفاظت ، ساتنه ، نګراني.

**ـــ کول** :- د نظر تر لاندې ساتل ، په نظر کښې لرل ، نګراني کول ، حفاظت کول ، ساتنه کول.

**نګین** :- (ن + ګي + ن)(ف ،اس ،مذ ، ج ـــ ونه) نګینه ، غمے ، قیمتي کاڼے چې کالو کښې لګولے شي.خصوصاً په ګوتو کښې.

**د ـــ تر لاندې** :- (د ـــ ,, زیر نګین ،،).

**زیر ـــ** :- (زي / زے + ر ـــ)(ف تر،تف) د نګین تر لاندې ، د حکم تر لاندې ماتحت ، محکوم.

**نګېندے** :- (ن + ګې + ن + دے)(اس،مو،ج) د ,, نګور ،، جمع ده.

**نګینه** :- (ن + ګي + نَ)(ف ، اس ، مو،ج ــ نې) نګین ، غمے ، د ګوتې غمے .د زنانهؤ په نومونو کښې راځي.

**نګے** :- (ن + ګے)(و ـــ نړے).

**نل** :- (ن + ل)(اس ، مذ ،ج ــ ونه / ان) تشه سرکنډه .هغه اوږد څیز چې په مېنځ کښې تش وي. د هندۍ د یو شور رومان (دنل د مینتي) هیرو.

**ـــ پیچ** :- (ـــ پې + چ)(پ تر،اس ،مذ ،ج ـــ ونه)　　هغه اله چې په نل باندې پرې رخونه (پېچونه) جوړولے شي.

**ـــ ساز** :-(ــ سا + ز)(فپ ، تر ، اس ، مذ ، ج ــ ان) هغه سړے (لوهار وغېره) چې نلونه جوړوي.

**ښیښئ ـــ** :- (خي/ شي + خ/ش + ئ ـــ)(پ تر،اس ،مذ ،ج ــ ونه / ان) هغه نل چې د ښیښې نه / څخه جوړ شوے وي.

**نل** :- (ن + ل) (انګ ،اس،صف) هېڅ ،صفر،نیشت ،نالائق.
**نلک** :- (نَ +لَ +ک) (ف ، اس،مذ) د الوچو یو قسم ، چې وړه او تروه وي، ارغنجکې.
**نلکه** :-(ن +ل +کَ) (اس ، مو ، ج ـــ کې) د ,,نل،، تصغیر دے .د نل وړه شان ټوټه . هغه نل چې د اوبو دپاره (په کورونو وغیره کښې) لګولے شي . ددې په سرکښې د اوبو د خلاصولو او بندولو اله لګېدلې وي.
**نلکۍ** :- (ن +ل +ک +ۍ) (اس ، مو) د ,,نلکه،، تصغیر دے .تنګه نلکه هغه نلکه چې قطر او ډډوالے ئې ډېر کم وي.
**نلګس** :-(ن +ل +ګ +س) (اس ،مذ ،ج ـــ ونه / ان) د ,,نرګس،، بدل شکل دے .مشهور ګل دے . (و ـــ نرګس).
**نلګوس** :- (ن +ل +ګو +س) (اس ،مذ ،ج ـــ ونه) د ,,نرګس،، ګل.

د لوهړ ګلونه ښۀ دي تر نلګوسه
ولې بیا چرې لوهړ چرې نلګوس (خوشحال)

**نلګے** :- (ن +ل +ګے) (اس ،مذ ،ج ـــ ګي) د ,,نل،، تصغیر دے .وړوکے نل.
**نلوب** :-(ن +لو +ب) (و ـــ نروب).

که اختیار دے د دیدن پرې تزکیه شي
د کـــوښښ په اور ئې وچ کړه له نلوبه (مرزا خان)

**نله** :-(ن +ل) (اس،مو،ج ـــ لې) د متیاز د وتو نالۍ .لویه نچه.
**نلۍ** :- (ن +ل +ۍ) (اس،مو) تنګ نل ، هغه نل چې د ډډ ځاے قطر ئې ډېر لږ وي . د چیلم نېچه . تش کارتوس ، د کالتوس توکه.
**نلے** :- (ن +لے) (اس ، مذ ، ج ـــ لي) د بني ادم یا د ځناور هغه هډوکے چې په مېنځ کښې ډډ وي .د پتون یا د مټ هډوکے . د ښاروي د ډډ هډوکے په مېنځ کښې ټینګه روغني ماده ، چې خوړے شي یا کباب کښې اچولے شي.
**نم** :- (ن +م) (ف ، اس ، صف ، مو ـــ ه) لوند والے ، تري .بهېدونکې ده ، رطوبت.
**ـــ کول** :- لوندول ، لمدول ، نمي ورکول.
**ـــ کېدل** :- لوندېدل ، لمدېدل.
**ـــ ګیر** :- (ـــ ګي +ر) (ف تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) هغـه کپـړه چـې د ,,پرخې،، د لوندوالي څخه بچ کېدلو دپاره د کټ دپاسه خورولے شي.
**ـــ ناک** :- (ـــ نا +ک) (ف تر ،صف،مذ ،مو ـــ ه) نمجن ،لوندوالے لرونکے.
**نم** :- (ن +م) (اس،عدد ،مذ ،مو ـــ ه) د ,,نهم،، بدل شکل.
**نما** :-(ن +ما) (ع ،اس) وده ، ترقي ، لوئېدنه ، د ونې بوټي ټوکېدنه ، (عموماً د ,,نشوونما،، په شکل کښې استعمالېږي).
**ـــ نما** :-(ـــ نُ +ما) (لاحقه) د فارسي لاحقه ده .نورو الفاظو نه وروستو لګولے شي .او د ,,ښودنې،، ,,ښکاره کولو،، معنې ورکوي.
**قبله ـــ** :- (ق +ب +لَ ـــ) (ف تر،اس،مو،ج ـــ ګانې) هغه اله چې د قبلې طرف ترې / پرې معلومولے شي.
**قطب ـــ** :- (ق +ط +ب ـــ) (ف تر ،اس،مو، ج ـــ ګانې) هغه اله چې د قطب ستوري لورے پرې معلومولے شي .بیا ددې په امداد نور طرفونه معلومولے شي.
**ګندم ـــ** :- (ګ +ن +دُ +م ـــ) (ف تر ،صف) غنم ښودونکے ، ټګ جن ، دوکه مار (اصلاً ددې متل نه اخستے شوے دے ,,ګندم نما جو فروش ،،).
**نمابه** :- (نَ +ما +بَ) (و ـــ نیمابه).
**نماړې** :- (ن +ما +ړے / ړې) (اس ،مذ) غټ غټ ګنډنه .لویو لویو ټکونو سره شډل ګنډ .لماړے.

**نماز** :- (ن +ما +ز) (ف ، اس ، مذ) نمونځ.
**ـــ استخاره** :- (ـــ (ز) +ا +س +ت +خا +ر) (عف ، تر ، اس، مذ) د استخارې نمونځ ، هغه نمونځ چې په کوم کار کښې د خداے نه / څخه د خبر ګوښتلو دپاره کولے شي او دا معلومولے شي چې دا کار کول به ښۀ وي او که به نۀ وي
**ـــ استسقاء** : (ـــ (ز) ا +س +ت +س +قا) (عف ، تر ، اس ، مذ) د استسقاء نمونځ ، هغه خاص دوه رکعته نمونځ چې د باران دعا په کښې غوښتے شي.
**ـــ باجماعت** :- ((ز) با +ج +ما +ع +ت) (ف ،تر ،اس،مذ) د جمعې سره نمونځ.
**ـــ پنجګانه** :- (ـــ (ز) +پ +ن +ج +ګا +ن) (ف تر ،اس ، مذ) پینځـۀ وخته نمونځ ، باقاعده په وخت وخت نمونځ (کونه).
**ـــ پېښین** :- (ـــ (ز) +پې +خي/شي +ن) (ف تر ،اس ،مذ) د ظهر د وخت نمونځ . په لنډیز یا بدل شکل کښې مازپښین ، ماسپخین ، ماسپښین ، د ظهر وخت ته وائي.
**ـــ خفتن** :- (ـــ (ز) +خ +ف +ت +ن) (ف تر ،اس) د عشاء د وخت نمونځ ، د اودۀ کېدو د وخت نمونځ . (په لنډیز شکل کښې ,,مازختن،، یا ماسختن .د عشاء وخت ته وائي).
**ـــ دیګر** :- (ـــ (ز) دي +ګ +ر) (ف ، تر ، اس ، مذ) د عصر د وخت نمونځ. (په لنډیز شکل کښې نمازیګر یا مازیګر د عصر وخت ته وائي).
**ـــ شام** :- (ـــ (ز) +شا +م) (ف تر ،اس) د مغرب د وخت نمونځ .په لنډیز شکل کښې یعني ,,ماښام،، نماښام ، ماخام ، ماشام ، د مغرب وخت ته وائي .چې د نمر د ډوبېدو نه پس لږه لږه تیارۀ راخوره شي.
**ـــ ګذار** :- (ـــ ګُ +ګو +زا +ر) نمونځ ادا کوونکے ، هغه سړے چې نمونځ باقاعده کوي .د نمونځ پابند ، نمونځ ګذار.

نماز ګذار وته ئې هسې حکم وشي
چې فرښتې د دوزخ په اور ګداز کا (خوشحال)

**نمازسپښین** :- (ن +ما +س +پ +خي/شي +ن) (و ـــ نمازپېښین).
**نمازل** :- (ن +ما +ز +ل) (و ـــ نمانځل).
**نمازنه** :- (ن +ما +ز +ن) (و ـــ نمانځنه).
**نماست** :- (ن +ما +س +ت) د ,,ملاست،، بدل شکل دے.
**نماستے** :- (ن +ما +س +تے) (و ـــ ملاستے) سملاستل.

د نماستي په وخت ئې واکړل ازار مه شه
د وربل غـوټې وشـي د ګیسـو هـــم لا (خوشحال)

**ـــ کول** :- سملاستل ، اودۀ کېدل ، خوب کول ،کوروالے کول.
**نماښام** :- (ن +ما +خا/شا +م) (اس ظر) د مغرب وخت ، د نمر د ډوبېدو نه / څخه لږ وروستو چې د نمر ختائۀ له لوري په لږه لږه تیارۀ راخوره شي . (و ـــ نمازشام).
**نماک** :-(ن +ما +ک) (حرف) رنګ ، ډول ، شان.
**نمام** :-(ن +ما +ما +م) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) چغلخور ، غماز.
**نمامي** :- (ن +م +ما +مي) (عف ،تر ،اس،مو) چغلخوري ، غمازي.
**نمانځ** :-(ن +ما +ن +(د) ز) (اس،مذ ،ج ـــ ونه) د ,,نمونځ،، اصل شکل دے
**نمانځل** :- (ن +ما +ن +(د) ز +ل) (مص) عزت ورکول ، سرلوړے ورکول . صفت کول ، تعریف کول . مجازاً: وربخښل ، عطاکول ،

که مې ونمانځې ساقي په یوۀ جام
تـر دا هوتره به نور څۀ وي احترام (رحمان بابا)

پالنه ، پرورش کونه.
**نمانځلے** :- (ن +ما +ن (د) ز +لے) (پ تر ، صف ، اس ، مذ ،ج ـــ لي) عزتمند ،

محترم.د څۀ چې صفت شوے وي.

**نمانځنه کول** :- عزت ورکول ، عزت افزائي کول ، سرفرازه کول.صفت کول ، تعريف کول.

**نمانځونے** :- (ن+ما+ن+(د) زو+نے)(پ تر ، اس ، فا ، مذ ، ج ــ ني) عبادت گذار ،پرهېزگار ، عابد .

**نمايان** :- (نُ+نا+يا+ن)(ف ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) ښکاره ،څرګند ، ظاهر.مجازاً لوے ، ډېر ، اوږد .

**نمائش** :- (نُ+ما+ئي+ش)(ف ، اس ، مذ ،ج ــــ ونه) ښکاره کونه ، ظاهرؤنه ، خلقو ته د ښودنې دپاره ښکاره کنښېښودنه.

**ــــ کول** :- ښودنه کول ، خلقو ته ښئيل ، د کومو ځيزونو يا تصويرونو وغېره په ښکلې ډول څرګند کنښېښودنه چې خلق ئې ننداره وکړي . هغه ځاے چېرته چې نمائش کولے شي د نمائش ځاے.

**ــــ ګاه** :-(ــــ ګا+ه)(ف تر ،اس ،ظر ،مذ ، ج ــ ونه) هغه خاص ځاے چېرته چې د ځيزونو نمائش يا اولس ته ښودنه کولے شي.

**د ــــ اطاق** :(د ـــ ا+طا+ق)(عف ، تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه)د ځيزونو ، تصويرونو وغېره د نمائش دپاره هال (لويه کوټه).

**ــــ کول** :- نمود کول ، ښودنه کول.دخلقو نظر ته وړاندې کول.

**نمائشي** :- (نُ+ما+ئي+شي)(ف ، تر ، صف ، مذ) د نمائش سره تعلق لرونکے ، نمائش ته منسوب ، د ښودنې . (مجازاً) هغه ځيز چې په ظاهره ښۀ او ښکلے ښکاري.خو په باطن کښې داسې نۀ وي.هغه سړے چې د ځان ښودنه کوي.خودنمائي.

**نمائښت** :- (نُ+ما+ئي+خ/ ش+ت)(و ــــ نمائش).

**نمائنده** :- (ن+ما+ئ+ن+دَ)(ف ، تر ، اس ، مو ، ج ــــ دې) ښودونکے ، ظاهروونکے ، د بل سړي دپاره کار کوونکے ، د بل سړي يا جماعت وغېره ترجماني کوونکے ، ترجمان.

**نمائندګي** :- (نُ+ما+ئ+ن+د+ګي)(ف تر ،اس ،مو) د چا په ځاے د هغه د قائم مقام په حېث کار .ترجماني ، د ډېرو خلقو دپاره د يو کس (يا د يو څو کسانو) ترجماني.

**ــــ کول** :- ترجماني کول ،د بل سړي يا د جماعت وغېره په ځاے کار کول.

**نمائي** :- (ن+ما+ئي)(ف ،اس ،مو) ښودنه ، ښکاره کونه .عموماً د لاحقې په طور استعمالېږي.

**نمائل** :- (ن+ما+ئ+ل)(مص) ښودل ، ښکاره کول ، څرګندول.

**نمبر** :- (ن+م+ب+ر)(انګ ،اس ،مذ ،ج ــــ ونه) شمېر ،شمار ،تعداد ، وار ، پانبي ، ځل.

**ــــ اخيستل** :- وار مېرل ، خپل وار ، مقررول.

**ــــ په نمبر** :- (پ ، ن+م+ب+ر)(انګ ، پ تر ، تف) وار په وار ، يو پسې بل.

**ــــ لګول** :- په کوم ځيز باندې د شمېر عدد ليکل.

**ــــ ورکول** :- په مقابله کښې د چا د کوښښ مطابق درجه مقررول وار ورکول.

**اول ــــ** :- (او+و+ل ــــ) د ټولو نه غوره.

**نمبرې** :- (ن+م+ب+رې)(اس ،مو ،ج) د نمبر (مؤنث) جمع ده.

**ــــ اخيستل** :- د امتحان په پره يا په بله کومه مقابله کښې د اعدادو په حساب درجه اخيستل.

**ــــ ورکول** :- په پرچه باندې د ممتحن د جاج مطابق هندسې ليکل.

**نمبرې** :- (ن+م+ب+رې)(اس ، مذ) پاليز له د خاورو ورکولو عمل.

**ــــ کول** :- پاليز له خاورې ورکول.

**نمبوړ** :- (ن+م+بو+ړ)(اس ،مذ ،ج ــ ونه) د کاريز غار يا سوره.

**ــــ چي** :- (ــــ چي)(پ تر ،اس ،مذ ،ج ــ ان) هغه سړے چې د کاريز په غار يا سوري کښې کار کوي.

**نمبولا** :- (ن+م+بو+لا)(اس ،مع) په يوه مشهوره قصه ,, نيمبولا تيمبولا ،، کښې يو پېرے.

**نمت** :- (ن+م+ت)(اس ،مذ) قصد ، هنډه ، عمد ، (د سهوې او خطا په مقابله کښې).

**نمجن** :- (ن+م+ج+ن)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) نَو واله ، لوند والے لرونکے ، لوند .

**نمخے** :-(ن+م+(ن) سے) لمخے ، لم څټ.کرګس ، ګرګس.

**نمد** :- (ن+م+د)(ف ، اس ، مذ) لمده ، د وړې څخه جوړ شوے فرش.

**ــــ پوش** :- (ــــ پو+ش)(ف تر ،صف ،اس ،مذ ،ج ــ ان) هغه سړے چې د وړې څخه جوړه شوے ستغه کپړه ئې اغوستې وي.فقير ،درويش .

**ــــ ساز** :- (ــــ سا+ز)(ف تر ،اس ،مذ ،ج ــ ان) نمدې جوړوونکے ، وړينې درۍ يا فرش جوړوونکے.

**نمد** :- (ن+م+د)(صف ،مذ ،مو ــــ ه) لوند ، نمجن.

**ــــ والے** :- (ــــ وا+لے)(پ تر ، اس ، مذ) لوندوالے ، تري ، خشتوالے ، نمجن والے.

**نمدبل** :- (ن+م+د+ب+ل)(اس ، مذ) سالن ، پخکړے ، لمدبل نګولے.

**نمده** :-(ن+م+دَ)(اس ،مذ ،ج ــ دې) د ,, نمد ،، تانيث دے (په پښتو کښې عموماً د تانيث په شکل کښې استعمالېږي).

**نمر** :- (ن+م+ر) نمر ، نور ، مېر ، نمېر ، افتاب ، شمس ،د نمر پلوشې چې نېغې په کوم ځيز لګي.پتاوے.

**ــــ او غر سره ورتلل** :- نمر/نور او غر سره برابرېدل ، د مازيګر وخت.

**ــــ په زيړي بودل ،،** :- د نمر رنګ په زيړېدلو ,,بودل ،، .د کوز مازديګر وخت ، يا د ورځې اخري وخت ,, بودل ،، .

**ــــ په غړه غړه بودل ،،** :- نمر د ډوبېدلو په حالت کښې بودل ،د ورځ اخري وخت.

**ــــ په ګوته پټول** :- ناممکنه کار کول ، د ښکاره ځيز په حقله دروغ ويل يا ترې انکار کول.

**ــــ پرېواتيز** :- (ــــ پ+رې+وا+تي+ز)(پ تر ،اس ،مذ) د نمر د پرېوتلو يا ډوبېدلو د طرف د مغرب ، مغربي.

**ــــ خاتۀ** :- (ــــ خا+ت)(پ تر ،اس ،ظ) د نمر د ختلو طرف ، مشرق ، نمرڅرک.

**ــــ څره وهل** :-

**ــــ څرېکه وهل** :- د نمر اولنۍ پلوشه راښکاره کېدل ، د نمر د راختلو اولنې وخت.

**ــــ مخے** :- (ــــ م+خے)(پ تر ،صف ،اس ،ج ــ خي) هغه چې مخ ئې د نمر په شان وي. مجازاً ښکلے ، ښائسته.

**ــــ يو نيزه راښکته کېدل** :- ډېره زياته ګرمي کېدل ، ډېر زيات ظلم زياتے کېدل.

**نمرګل** :- (ن+م+ر+ګ+ل)(پ تر ،اس ،مذ ،ج ــــ ونه)د مشهور ګل نوم . نمرپرست ، افتاب پرست.

**نمرود** :- (ن+م+رو+د)(اس ، مع) د پخواني بابل ښهر يو مشرک بادشاه چې حضرت ابراهيم عليه السلام ئې په اور کښې اچولے ؤ.

کبرىٰ نار نمرود تيار کړ
په خليل باندې ګلزار کړ (حافظ)

**نمره** :- (نُ+م+رَ)(اس ،مو)(و ــــ نمبر).

**ــــ زني** :- (ـــــز + ني)(ف تر، اس، مو) نمبرلګول، ټاپه یا د شمېر نمبر لګول.

**نمري** :- (ن + م + ري)(اس، ج) جامې، لباس.

شفق نۀ دے چې په وخت د ماښام لید شي
دا پـــــــه وینـــــو کا د خلقـــو نمـــري تـــر (معزالله)

**ــــــ کېدل** :- د ښځو میاشتنۍ بیماري، کالي جامې.

چې د ښځو وشي نمري
وادي غونډي زاړۀ نمري (شرعت اسلام)

**ـــ له نمریو ویستل** :- بربنډول، لغړول.

**نمریو** :- (ن + م + ر + یو) د ,, نمري ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ توړو سره راځي.

**دـــــ ایستل / اباسل** :- بربنډول.

درست د خپلو نمریو اوو یستم خوشحاله
یو د غـــاړې هـــارې د ګلونو مـــه شلوه (خوشحال)

**نمرپیل** :- (ن + م + رې + ي + ل)(مص) په اوبو سره وینځل، لوښے په اوبو سره صفا کول، کنګالول.

**نمرپیلے** :- (ن + م + رې+ي+لے)(پ تر، اس، مف، ج ـــــ لي) په اوبو وینځلے شوے، په اوبو سره صفا شوے، کنګال شوے.

**نمړل** :- (ن+م + ړ + ل)(مص) نمړۍ کول، لقمه کول، نوړۍ کول.

**نمړۍ** :-(ن + م + ړ + ۍ)(اس، مو) نوړۍ، لقمه، ګوله.

**ــــ کول** :- نمړۍ جوړول، نوړۍ جوړول، لقمه کول.

**ـــ نمړۍ کول** :- د ډوډۍ وغېره داسې وړې وړې ټکړې جوړول، چې هره ټکړه د یوې نمړۍ (نوړۍ) هومره وي- وړې وړې ټکړې جوړول.

**غـوړه** ـــ :- (غ + و + ړ ـــــ)(پ تر، اس، مو) غـوړو والـه، نمړۍ یـا ډوډۍ. مجازاً: غوړ خوراک، یا ښۀ څیز.

**یو** ـــ :- د یوې نمړي / نوړي هومره. مجازاً لږ شان. لکه: یو نمړۍ ډوډۍ.

**یوه ـــــ کـول** :- د ټول څیز نه / څخه یوه نوړۍ جوړول ټول څیز په یوه لقمه کښې خوړل.

**نمـړے** :- (ن / نـو + م + ړے)(صف، اس، مذ، ج ـــ ړي) هغـه چې نـوم ئـې اخستے شوے دے نام برده. مشهور، نوم واله، شهرت واله.

**نمړے** :- (نُ / نو +م+ړے)(اس، عدد) اولنے، وړاندینے، مقدم.

**نمړۀ** :-(نُ / نو + م + ړ + ۀ)(اس، صف، مو) د ,, نمړے ،، تانیث دے.

**ــــ ټار** :- (ـــــ ټا + ر)(پ، تر، صف، مذ، مو ـــ ه) هغه سړے چې یوې یوې نمړي (نوړۍ) پسې ګرځي - ډوډۍ پسې ګرځېدونکے، تالي څټ، مجازاً: شوم، کنجوس.

**ـــــ شمېرل** :- د یو کس د خوراک په وخت هغه ته ښه ښه کتل.

**ـــــ نه تېرېدل، بې د / له چا نه / څخه** :- د چا د ملګرتیا نه / څخه ډودۍ نه خوړل، مجازاً: چا سره ډېره زیاته مینه لرل.

**ــــ نښتل** :- نواله / نوړۍ په مرۍ کښې نښتل، نمړۍ نۀ تېرېدل - د خوراک په وخت کومه خرابه یا ناګواره خبره اورېدل.

**ـــ نه تېرېدل** :- نوړۍ / نواله د مرۍ څخه نه ښکته کېدل. مجازاً: ډېر زیات غمجن ,, بودل ،، ډېر زیات فکر مند ,, بودل ،،.

**نمــزدک** :- (ن + م + ز + د + ک)(اس، مـذ، ج ــــــ ونـه) جماعـت، جومـات، مسجد.

**نمستے** :- (ن + م + س + تے)(هـ، اس) د هندوانو سلام، نمسکار، (نمس، ټیټېدلو ته وائي).

**نمسي** :-(ن + م + سي) اولاد، نسل.

**نمسے** :- (ن + م + سے)(اس، مذ، ج ــــ سي) نوسے، نواسه د لـور زوے یـا د زوي زوے.

**نمط** :- (ن + م + ط)(ع، اس، فا) فرش، بچونه. د شطرنج خانه داره تخته. بساط، روش، طور طریقه.

**په دې ـــــ** :- (پ + دې)(عب، تر، تف) په دې طریقه، په دې ډول، په دې انداز.

**نمعلوم** :- (ن + م + ع + لو + م)(عف، تر، اس) معلومه نه ده. (خج په ,, نَ ،، دے)

**نمک** :- (نَ + م + ک)(ف، اس، مذ) مالګه.

**ـــ پاش** :- (ـــــ پا + ش)(ف تر، صف، مذ، مو ـــ ه) مالګه دوړوونکے، مالګه وراچوونکے.

**په زخم ـــ پاشي** :- (پ، ز+خ +م ـــ پا +شي)(ف، تر، اس، مذ) په زخم مالګه دوړونه، د یو تکلیف دپاسه بل تکلیف زیاتونه، په خبرو د چا د زړۀ خوږ یا غم ور زیاتونه.

**ـــ پاشي** :- (ـــ پا + شي)(ف، تر، اس، مو) مالګه دوړونه، مالګه وراچونه.

**ـــ پاشي کول، په زخم** :- په زخم باندې مالګه دوړول، د یو دوک یا تکلیف د پاسه بل دوک یا تکلیف ورزیاتول.

**ــــ پرورده** :- (ـــ پ + ر + و + ر + د)(ف، تر، صف) په مالګه لوے شوے، د چا په ډوډیو لوے شوے، خانه زاد، نمک خور.

**حقِ ـــ** :- (ح + ق + قِ ـــــ)(عف، تر، اس، مذ) د چا مـالګې خوړلو حق، د پالنې او د روزنې حق، د مالګې حق.

**ـــــ حرام** :- (ـــــ ح + را + م)(عف، تر، صف، مذ، ج ـــ ه) هغه سړے چې د چا نمک خوري. د هغۀ سره بد کوي یا د هغه پره نه کوي کفرانِ نمک کوونکے، احسان فراموشه. نېکي غود.

**ـــ حرامي** :- (ـــــ ح + را + مي)(ف، تر، اس، مو) نمک حرامول، د چا چې نمک خوري هم هغـه سره بد کول. د خپل مالک پره نۀ کونه، د خپل مالک د دښمنانو پره کونه، احسان فراموش.

**ـــــ حرامي کول** :- د چا چې نمک خوري هغه سره بد کول، یا د هغۀ د فائدې یا خوښې خلاف کار کول، د خپل مالک پروا نۀ کول، د هغۀ د دښمنانو خبره منل. احسان فراموشي کول، کفرانِ نعمت کول.

**ـــ حلال** :- (ـــــ ح + لا + ل)(عف تر، صف، مذ، مو ـــ ه) هغه سړے چې د چا نمک (ډوډۍ) خوري. د هغۀ سره وفادار اوسي. احسان منونکے، د نېکۍ مننه کوونکے.

که له خپله حقیقته درته وایم
زۀ ځائي یم د مغل نمک حلال (خوشحال)

**ـــــ حلالي** :- (ـــ ح + لا+ لي)(عف، تر، اس، ړو) مالګه، حلالونه، د چا چې ډوډۍ خوري د هغې حق ادا کونه. وفاداري، احسان مننه، نېکي، مننه.

**ـــــ خور** :- (ـــ خو + ر)(فپ تر، صف، مذ) مالګه خوړونکے، هغـه چې د چا مالګه خوري. د چا نه / څخه خپله اوزي موندونکے، په ډوډیو لوئېدونکے، وفادار.

**ــــ خوړل، د چا** :- د چا د کور خوراک کول، د چا پـه کور کښې خوراک څښکاک کول، د چا نه / څخه تنخواه وغېره اخیستل.

**ــــــ دان** :- (ـــــــ دا + ن)(ف تر، اس، مذ، ج ــــ ونه) د مـالګې لوښے، هغـه لوښے چې په کښې مالګه پرته وي.

**ـــــ زده** :- (ـــــ ز + دَ)(ف، تر، صف) هغه څیز چې مالګه ورکړے شوے یعني په مالګه لګولو محفوظ کړے شوي وي.

**ـــ سار** :- (ـــــ سا + ر)(ف تر، صف، مذ، مو ـــ ه) مـالګې والـه، مـالګین،

نمكين

ــــ**شناس** :- (ــــش + نا + س)(ف تر ، صف ، مذ ، موـــه) د مالګې حق پېژندونکے / پېجندونکے ، شکر ګذار ، احسان منونکے.

ــــ**شناسي** :- (ــــش + نا + سي)(ف ، تر ، اس ، مو) د مالګې حق پېژندنه / پېجندنه. وفاداري، د احسان مننه.

دــــ **تېزاب** ⊗ دـــتې + زا + ب)(فپ ، تر، اس ،مذ) د تېزابو يو قسم دے. (سلفيورک ايسډ).

**نمكين** ⊗ ن + م + کي + ن)(ف تر، صف ،مذ ،موـــه) مالګې واله ، د مالګې په شان ذائقه لرونکے. ښکلے ، ښائسته.

**نمل** :- (ن + م + ل)(ع ،اس ،مذ ،جـــونه) مېږے.

د هاتي د پښې د لاندې مونږ مېږي يُو

نمل نــــه لاندې کـوي په ظُرفا دي (حافظ)

**نمله** :- (ن + م + ل)(اس ، مو،جــــلې) د اس د پاسه د اچولو هغه کپړه چې د اس خولې راکاږي. عرق چين.

**نمناك** :- (ن + م + نا + ک)(ف تر،صف،مذ ،موـــه) نمجن ،نم لرونکے ، لوند

**نمناكي** :- (ن +م+نا+کي)(ف،تر،اس ، مو) نمجنوالے ، لوندوالے.

**نمنځ** :- (ن + م + ن + (د) ز)(اس ، مذ ،جــــونه) نمونځ ، نماز.

**په ـــــ ويل** :- په احترام سره ويل. په ادب سره ويل.

**نمنځ** :- (ن + م + ن + (د) ز)(اس ، مذ ، جـــونه) عزت ،قدر ،احترام.

**نمونځ** :- (ن + مو + ن + (د) ز)(اس ،مذ ،جــــونه) نماز.

ـــــ**اودس** :- (ـــــاو + د + س)(پ تر،اس ،مذ) نماز او د نماز دپاره اودس ، مجازاً د خدا ے يادونه ، عبادت.

**خپلـــــ اودس کول** :- مجازاً : خدا ے يادول ، په عبادت کښې مشغول اوسېدل ، دنياوي کارونو سره تعلق نه لرل.

ـــــ**قضا کېدل** :- د نمونځ مقرره وخت تېرېدل.

ـــــ **کول** :- عزت کول ، احترام کول ، قدر کول.

**نمنځل** ⊗ ن + م + ن + (د) ز + ل)(مص)(وـــــنمانځل).

**نمنځنه** :- (ن + م + ن + (د) ز+ ن)(حمص)(وـــــنمانځنه).

**نمنځلے** :- (ن + م + ن + (د) ز + لے)(اس ،مذ ،مف ، جـــــلي) نمانځلے ، عزت دار ، معزز ، محترم.

**نمنځن** ⊗ ن + م + ن + (د) ز + ن)(پ تر،صف ،مذ ، موـــــه) عزت ، مينه محبت، لکه نمنځن ويل.

**نمنځنې** :- (ن + م + ن + (د) ز + نې) صفت ، احترام ، عزت.

که نمنځې وئيل دې نهٔ کېږي وماته

کله کله راتــه کـــړه خبـــره سپوره (عبدالقادر)

**نمو** :- (ن + مو)(ف ،اس) وده ، ترقي ، لوئېدنه ، رشد.

ـــــ**کول** :- وده کول ، لوئېدل ، ترقي کول.

**نمود** :-(ن + مو + د)(ف ،اس ،مذ ،جـــــونه) ښودنه ، نمائش.

**تــش ـــــ** :- (ت + ش ـــــ)(ف ،پ تـر ،اس ، مـذ) خـالي ښـودنه ، محض نمائش.

ـــــ**کول** :- ښودنه کول ، نمائش کول ، ښکاره کول.

**نمودار** :- (ن + مو + دا + ر)(ف تر ، صف ، مذ ، جـــه) ښکاره ، په نظر کښې راتلنه ، ظاهر څرګند.

ـــــ**کېدل** :- ښکاره کېدل ،په نظر کښې راتلل څرګندېدل. راتلل ،پېښنه کول.

**نموداري** :- (ن + مو + دا + ري)(ف ، تر ، اس ، مو) ښکاره کېدنه ، په نظر کښې راتلنه. څرګندېدنه.

ـــــ**کول** :-ښودنه کول ، نمائش کول ، څرګندونه کول.

**نموړل** :-(ن + مو + ړ +ل)(مص) مروړل ، په لاس يا ګوتو کښې تاوول، تاؤ ورکول

**نموړل** :- (ن + مو + ړ + ل)(مص) مروړل ، په لاس کښې مړل.

شبستان مې د ابکارو معنو ځاے دے

تې ئې نمورېم پـــه غــــدو پــــه اصال (خوشحال)

**نموړل** :- (ن+مو+ګ/ ژ + ل)(مص) وېښتهٔ ګمنځ کول ، ړمنځول.

په کښې زړهٔ د خوار خوشحال دے چې خورنشي

ډمـــــې ورو ورو د شهـــې زلفـــې نمـــوړه (خوشحال)

**نمونوي** :- (ن + مو + ن + وي)(ف تر،صف) د نمونې په طور ، د نمونې په دود ـ د ښودنې په ډول ، د نمود په طور.

**نمونې** :-(ن + مو + نې) د ,, نمونه ،، جمع ده ـ د ,, نمونه ،، بدل شکل چې د مغيره تورو سره راځي.

**دـــــ په طور** :- (دــــــ پ ، طو + ر).

**دـــــ په ډول** :- (د ـــــ پ ، ډو + ل)(فپ ،تر،تف) د مثال په طور ، د نظير په طور.

**نمونه** :- (ن + مو + نَ)(ف ،اس ،مو،جـــــنې) مثال ، نظير، نقشه ،نقل. د ډېر جنس څخه لږ شان څيز ، چې لـه دې څخه د ټول جنس په حقله قياس وکړے شي. (طنزاً) عجيبه ، د خندا وړ. لکه : فلانے هم يو نمونه ده !

ـــــ**وړاندې کول** :- د ډېر جنس څخه لږ شان څيز ښئيل ،مثال پېش کول.

**يوـــــ ده** :-(جمله) طنزاً وئيلے ، يو شکل دے. يو لوے دے. عجيبه سړے دے. مضحک دے.

**نمونه** :-(نُ + مو + نَ) د ,, نومونه ،، لنډيز شکل دے.

**نمونيا** :- (ن + مو+ ن / ني + يا)(انګ ،اس ،مو،جــګانې) يو بيماري ده. چې په کښې د مريض پړپوس خراب شي.

ـــــ**کېدل** :-په نمونيا ناروغه کېدل، د نمونيا په مرض اخته کېدل.

**نمي** :- (ن + مي)(ف تر،اس ، مو) لوند والے ، رطوبت،پرخه ، شبنم. لکه : پېش نمے ، د پرخې پرېوتلو نه وړاندې وخت.

**نميري** :- (ن + مې + ري)(ا س، ج) نمري ، جامې ، لباس،د حيض ورځې ، زړوکي.

دا دوه څيزه پتوه په څهٔ به پټ شي

د نامردو نامردي، د ښځو نميري (خوشحال)

**نمه** :- (ن + مَ)(اس ،مو ، عدد ، جـــــمې) د ,, نم ،، تانيث دے. نهمه.

**نميمه** :- (ن + مي + مَ)(ع ، اس ، مو ، جـمې / نمائم) چغل خوري ، نمامي ، غمازي.

**نن** :- (ن + ن)(اس ، مذ) روانه ورځ ، (ف : امروز) نن ، موجود زمانه يا وخت

ـــــ**پرون** :- (ـــــپ + رو + ن)(پ تر،اس ،ظر) ننۍ ورځ او تېره شوې جخته ورځ. موجوده زمانه يا وخت ، حاضر وخت.

ـــــ**شپه** :- (ـــــش + پ)(پ تر،اس،ظر) ننۍ ورځې پسې راتلونکې شپه.

ـــــ**صبا کول** :- انې بانې کول ، په دروغو وعدو وخت اړول.

ـــــ**وخت** :- (ـــــو + خ + ت)(پ تر ، اس ، ظر) نن صبا ، موجوده وخت ، موجوده زمانه.

ـــــ**ورځ** :- (ـــــو + ر + (د) ز)(پ تر،اس ،ظر) ننۍ ورځ ، دا ورځ چې روانه ده. نن صبا ، دا وخت يا زمانه.

**پهـــــ صبا کښې** :- (پـــص + با+ کې)(پ تر،تف) يا نن او که نن نهٔ وي نو صبا له. مجازاً : په دې يو څو ورځو کښې.

**ننباسي** :- (ن+ن+باسي)(فعل) د ,, ننه باسي ،، لنډيز ليک دے ـ د ننه ايستل مصدر څخه د حال (غايب) صيغه ده.

**ننځړه** :-(ن+ ن + (د) ز + ړَ )(اس ، مو ، ج ) رانجړۀ ، رانزړۀ ، زرنه-چوړبل-

**ننځه ننځه کېدل** : په مرض کښې داسې پړېوتل چې نۀ خو ئې مرض ښۀ کېږي او نۀ زياتېږي په مرض کښې نيم حاله کېدل-

**ننداپ** :- ( ن + ن + دا + پ )(اس،مذ ،ج ـــ ان ) نداف ، ډانډت مار ،حلاج -

**جولا ـــ** :- (جو + لا ـــ)(پ تر،اس ) نداف او کپړې جوړونکے ، مجازاً: د ادنٰی ، کمين سړے يا خلق-

**نداپڼه** :- (ن + ن + دا + پ + ڼه )(پ تر، اس ، مو ، ج ـــــ ڼې )د ,, ننداپ ،، تانيث دے-

**نداپي** :- (ن + ن + دا + پي ) (پ تر ، اس ، مو ) د ننداپ کار ، ډانډت ماري ، هغه تار کوم چې د ګډو بزو د قلمو څخه جوړولے شي-

**ـــ کول** :- د ننداپ پيشه کول ، ډانډت ماري کول ، ندافي کول-

**ننـدار** :-(ن + ن + دا + ر ) د ,, ننـداره ،، لنـډيز شـکل دے -د سـابقې پـه طـور استعمالېږي-

**ـــــ تـون** :- (ـــــ تـو +ن ) (پ تـر ، اس ، مـذ ، ج ـــ ونـه )د ننـدارې ځـا ے ، د تماشې ځا ے ، نماش ګاه ، د نمائش ځا ے-

**ـــــ ځـے** :- (ـــــ (د ) زے )(پ تر ، اس ، ظر، مذ ، ج ـ ونه) د ننـدارې کولـو ځا ے ، تماشه ګاه -ننداړتون-

**ـــــ چڼـه** :- (ـــ چ + ڼـه )(پ تر،اس،مـو،ج ــــ ڼې ) د ,, ننـدارچي ،، تانيـث دے-

**ـــــ چي** :- (ـــ چي )(پ تر،اس،مذ ،ج ـ ان ) ننداره کوونکے ، نظاره کـوونکے ، تماشبين-

ننداړچي د خپل صورت شه
چـــې مسلم ئـــې که جهود (رحمان بابا )

**ننـدارمۍ** :- (ن + نْ + دا + ر + م + ئ )(اس ،مو ) د کابل روپۍ ، کابلۍ -

**ننداره** :- (ن + ن + دا + ر )(اس ، مو ، ج ــــ رې ) نظاره ، کتنه ، تماشه-

**ـــــ ښودل** :- تماشه ښودل-

**ـــــ کوونے** :- (ک + ړو + نے )(و ـــ ننداړچي )-

**ـــــ کول** :- تماشه کول ، کتل-

**نندره** :-(ن + د + د + ر )(اس ،مو،ج ـ رې ) نېندره -هغـه چنده کومـه چې د وادۀ ښادۍ په موقع خپل خپلوان او دوستان د وادۀ کور والـه ۇ لـه ورکـوي چې بيا د دوي د ښادۍ په موقع واپس کړے شي-

**ـــ ټولـول** :- د خپلو خپلوانو وغېره څخه د وادۀ ښـادۍ پـه موقـع د نېـدرې رقـم ټولول-

**ـــ ورکول** :- د وادۀ ښادۍ په موقع څۀ رقم د وادۀ کـور والـه لـه ورکـول چې بيـا ددۀ کره په ښادۍ واپس کړے شي-

**ننـدرور** :- (ن +نْ+ د + رو + ر )(اس ،مـو ،ج ــــ انې / رينـدې ) نـدرور ، د خاونـد خور

**ننديار** :- (ن + ن + د + يا + ر )(اس ، مو، ج ـــ انې ) د ماما ښځه ، مامي-

**ننړوس** :-(اس ، مذ ) يو قسم ګياه ده -خرخېږے ، کاپرخولۍ-

**ننزړه** :-(ن + ن + ز + ړ )(و ـــ ننځړه )-

**ننږور** :- (ن + ن +ګو/ ژو + ر )(اس،مو) نږور ،د زوئي ښځه-

**ننکه** :-(ن + ن + کَ )(اس،مو،ج ـــ کې ) مرسته ،امداد ،طرفداري ،حمايت-

**ننکۍ** :- (ن + ن + ک + ئ )(اس ، مـو ) د يـو بـوټي نـوم دے -چې وېخ ئې غونډ شان وي-

**ننکۍ** :- (ن +ن+ک + ۍ )(اس،مو ) دانه ، چې په بدن راوخېږي-

**خوراکي ـــــ** :- (خو+ را + کي ـــــ )(پ تـر ،اس ،مـو ) ناسـور ، هغـه ننکـۍ چې دننه دننه خورېږي -سرطان هغه دانه چې هېڅکله نۀ جوړېږي-

**د ځټ ـــ** :- (د + (ت) س + ټ ـــ )(پ تر ،اس،مو ) نـۀ ښـکارېدونکې ننکـۍ ، نۀ ښکاره کېدونکې دوک-

**غټې ـــ** :- (غ + ټې ـــ )(پ تر ، اس ، جم ) هغه ننکۍ (دانې ) چې غټې غټې وي-مجازاً : د چيچک دانې-

**نرۍ ـــ** :-(ن + ر + ۍ ـــ )-

**وړې ـــــ** :- (و + ړې ـــــ )(پ تـر ،اس ، جـم ) هغـه دانـې چـې وړې وړې وي - مجازاً : خسره-

**ننګ** :- (ن + ن + ګ ) تورزن ، غيرت-حميت ، پښتو ، عزت ، شرم-

**ـــــ په ځاے کول** :- د غېرت او د مېړانې وصول تر سره کول-

**ـــــ خوړل** :- په کومه خبره غېرت په جذبه کښې راتلل ، غېـرت کـول- (پـه چـا ) د غېرت له کبله چا سره په مرسته او حمايت کښې ودرېدل-

**ـــ د لاسه اېستل** :- بې ننګي کول ، د بې غېرتۍ کار کول-

**ـــــ کول** :- د غېرت څخه کار اخيستل ، حميت کول-

**ـــــ ګټل** :- د دښمن څخه بدل اخيستل ، خصوصاً د بې عزتۍ بدل اخيستل-

**ـــــ وړل** :- (و ـــ ننګ خوړل )-

**ـــــ و ناموس** :- (ـــ (ګو) نا+مو + س )(پ تر ،اس،مذ ) د دواړو لفظونـــو تقريباً يو شان معنې دي دويم لفظ پـه کښـې تاکيـد دپاره او زور پېـدا کوي- غېرت ، حميت ، عزت-

**د ـــ ناموس خبره** :-د غېرت خبره ، د حميت خبره ، د عزت خبره-

**د ـــ پالنه** :- (د ، پا + ل + نَ )(پ تر،اس ) د غېرت پوره کونه ، حميت کونه-

**ننګاوۀ** :- (ن + ن + ګا + ۇ )(حمص ) ننګونه ،په ننګ کونه ،غېرت وروستنه-

**ننګټۍ** :- (ن + ن + ګ + ټ + ۍ )(اس ، مو ) د يو قسم بوټي نوم دے-

**ننګرهار** :- (ن + ن + ګ + ر + ها + ر )(اس ، مع ) د پښتنو د يوې علاقې نوم -په افغانستان کښې قطب مشرق ته دے-

افريدي مهمند شنواري ګوره څۀ کا
د مغلـــو لښکـــر پروت په ننګرهار (خوشحال )

**ننګرهارۍ** :- (ن + ن + ګ + ر + هـا + ر + ئ )(اس ،مـو ) د ,, ننګرهـارے ،، تانيث دے-

**ننګرهـارے** :- (ن + ن + ګ + ر+هـا + رے )(اس،مـذ ،ج ــــ ري ) د ننګرهـار اوسېدونکے ، په ننګرهار کښې جوړ شوے ، ننګرهار ته منسوب-

**ننګړۍ** :- (ن + ن + ګ + ړ + ئ )(صف ،مو ) د ننګړے تانيث دے- رنګړۍ-

**ـــــ شپه** :- (ـــ ش + پَ )(پ تر،اس،مو،ج ـــ پې ) نيمه شپه-

**ننګړے** :- (ن + ن + ګ + ړے )(صف ،مـذ ،ج ـــ ړي ) رنګـړے ، د ګـور ضـد ، کم کم-

**ننګښے** :- (ن + ن + ګ + خے / شے )(اس ،مـذ ، ج ــــ ښي ) د اوبـو پـه مخکښـې بند چې د لرګو وغېره نه /څخه جوړ شوے وي-

**ننګک** :- (ن + ن + ګ + ک )(صف ،مذ ،مو ـ ه ) خالص ، صفا -

**ننګوړے** :- (ن + ن + ګو + ړے )(اس ، مذ ،ج ـــ ړي ) تريـو انـار، وړوکے تريو انار-

**ننګوښے** :- (ن + نْ + ګو + خے / شے )(اس ،مذ ،ج ـــــ شي ) هغـه کـوږ لـرګے چې په دېوال کښې ټک وهلے شي او بيا پرې شاروي تـړي يـا جامې وغېـره پـرې زوړندوي- ننګاښے -

**ننګول** :- (ن + ن + ګ + ۇ + ل )(مص ) په ننګ کول ، غېرت وروستل-

**ننګولے** :- (ن + ن + ګو + لے )(اس ،مـذ ،ج ــــ لي ) نګولے ، سالن ، پخکړے ، لمده بل-

**ننګولے** :- (ن + ن + ګ + ۇ + لے )(پ تـر ،اس ،مـف ، ج ـــ لـي ) پـه ننګ کـړے شوے ، هغه چې غېرت ور ولاړ کړے شوے وي-په غېرت کړے-

**ننګه** :- (ن + ن + ګَ) د ننګ تانیثي شکل دے. (و ـــ ننګ).
**ننګېدل** :- (ن + ن + ګې + د + ل) (مص) عار کول، ننګ کول.
**ننګے ننګے** :- (ن + ن + ګے + ن + ن + ګے) (حرف) د مقدار توري. لپه لپه. ټوټه ټوټه، لړلړ.
**په ـــ** :- په لپه لپه، چونګ چونګ، لړلړ.

د خاطر وینې مې خوري په ننګې ننګې
لـــه ګناهه ویره نۀ کاندې معصوم دے (خوشحال)

**ننګیالے** :- (ن + ن + ګ + یا + لے) (پ تر، اس، فا، ج ـــ لي) د ننګ خاوند، ننګ کوونکے.

ننګیالي چې یو ځل مخ کړي په یو لوري
نـــور هېڅ نۀ ویني کوهے وي که ګړنګ (رحمان بابا)

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب) (پ تر، اس، مذ) ننګ لرنه، غېرتمندي.
**ننني** :- (ن + ن + ن + ي) (اس، صف، مو) د ,,نننے،، تانیث دے.
**نننے** :- (ن + ن + نے) (اس، ج، نني) د نن، د نن ورځې، د نن ورځ سره تعلق لرونکے. نن پېدا شوے، لکه: نننے اخبار، اوسنے، ددې زمانې، د موجوده وخت. لکه: نننے انسان.
**ننواتې** :- (ن + ن + وا + تې) (اس، مو) د چا نه/څخه معافي غوښتلو دپاره په طور د جرګې تلل. د چا د رضا کولو دپاره هغه کره تلل. (د پښتنو یو دستور دے چې د چا نه/ څخه معافي غوښتلو دپاره یا د خفه او مرور د پخلا کولو دپاره یواځې یا (بالعموم) مشرانو سره د هغۀ کور ته ورځي.
**ـــ کول** :- د رضا کولو دپاره چا کره جرګه ورلېږل یا پخپله تلل.
**ـــ نیول** :- (و ـــ ننواتې کول).
**ـــ منل** :- کور ته د راغلي سړي یا د جرګې خبره منل او دښمن معاف کول او ترې پخلا کېدل، جرګه منل.
**په ـــ تلل** :- د چا د رضا کولو یا پخلا کولو دپاره د هغۀ کور ته تلل.
**ننواته** :- (ن + ن + وا + تَ) (و ـــ ننواتې) (واحد کم کوز استعمالېږي).
**ننوب** :- (ن + نو + ب) (اس، مذ) څڅېدنه، تراوش.
**ننوت** :- (ن + ن + ؤ + ت) (فعل) دننه وتل مصدر څخه د ماضي (غائب) فعل دے
**ننوتل** :- (ن + ن + و + ت + ل) (مص) دننه تل، داخلېدل.
**ننوتنه** :- (ن + ن + و + ت + نَ) (حمص) دننه تلنه، داخلېدنه.
**ننوتوځے** :- (ن + ن + و + تو (د) ځے) (پ تر، اس، ظر، ج ـــ ځي) د ننه وتلو ځاے، د ورداخلېدلو ځاے مدخل.
**ننوتونے** :- (ن + ن + و + تو + نے) (پ تر، اس، مذ، ج ـــ ني) دننه تلونکے، (ور) داخلېدونکے.
**ننونه** :- (ن+ن+ؤ+نَ) (حمص) څاڅکے څاڅکے څڅونه، تقطیر.
**ننول** :- (ن + ن + ؤ + ل) (مص) څڅول، څاڅکے څاڅکے غورزول، قطره قطره څڅه ول، تقطیر کول.
**ننولے** :- (ن + ن + ؤ + لے) (پ تر، اس، مف، ج ـــ لي) څڅه ولے، څاڅکے څاڅکے راتوئے کړے.
**ننوېستل** :- (ن + ن + وې +س+ ت + ل) (مص) دننه کول، (ور) داخلول.
**ننه** :- (ن + نَ) د ,,نن،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي. لکه: تر ننه پورې...
**ـــ اېستنه** :- (ـــ اې + س + ت + ن).
**ـــ یستنه** :- (ـــ ي + س + ت + ن).
**ـــ باسنه** :- (ـــ با + س + ن) (حمص) دننه کونه (ور) داخلونه.
**ـــ باسي** :- (ـــ با + سي) (فعل) د ,,ننه باسل،، مصدر څخه د حال (غائب) صیغه.
**تر ـــ** :- (پورې) تر ننۍ ورځې پورې، تر اوسه پورې.
**ننه** :- (ن + نَ) (حرف) دننه، اندرون.
**ننېدل** :- (ن + نې + د + ل) (مص) څاڅکے څاڅکے څڅېدل، قطره قطره توئېدل، تقطیر کېدل، صفا کېدل، فلتر کېدل.
**ننېدلے** :- (ن + نې + د + لے) (پ تر، اس، مف، ج ـــ لي) څڅېدلے، څاڅکے څاڅکے توے شوے. تقطیر شوے، فلتر شوے، صفا شوے.
**ننېدۀ** :- (ن + نې + دۀ) (حمص) څاڅکے څاڅکے څڅېدنه، تقطیر، فلتر کېدنه. صفا کېدنه.
**نو** :- (نو) (ف، صف) نوے، جدید، تازه، (لاحقه) نورو الفاظو سره راځي او د نوي معنې ورکوي.
**ـــ آباد** :- (ـــ آ + با + د) (ف تر، صف، مذ، مو ـــ ه) نوے اباد شوے (ځاے، کلے وغېره).
**ـــ ابادي** :- (ـــ ا + با + دي) (ف تر، اس، مو) نوے اباد شوے ښار یا علاقه. نوے قبضه شوے یا د حکومت تر لاندې راوستې علاقه یا ملک.
**ـــ بالغ** :- (ـــ با + ل + غ) (عف، تر، صف، مذ، مو ـــ ه) هغه هلک چې نوے نوے بالغ شوے وي. نوے ځوان شوے زلمے.
**ـــ عروس** :- (ـــ عُ + رو + س) (ف تر، اس، مو) نوې وادۀ شوې جینۍ، نوې ناوې.
**ـــ عمر** :- (ـــ عُ / عو + م + ر) (ف تر، صف، مذ، مو ـــ ه) د کم عمر، کم عمر، ووړوکے.
**ـــ عمري** :- (ـــ عُ / عو + م + ري) (ف تر، اس، مو) کم عمري، وړوکوالے.
**نَو** :- (نَو) (اس، مذ، ج ـــ وونه) نمي، لوندوالے، رطوبت.
**ـــ اخیستل** :- نمجن کېدل، زیمجن کېدل.
**دسترګو ـــ وچېدل** :- په سترګو کښې نو نۀ پاتې کېدل، بې حیا کېدل، بې شرمه کېدل، بدلحاظه کېدل. پیپ، د زخم ګنده اوبۀ.
**دسترګو ـــ نۀ لرل** :- په سترګو کښې (د حیا) اوبۀ نۀ لرل بې حیا ,,بودل،، بې شرمه ,,بودل،،.
**ـــ کول** :- په زخم کښې پیپ پېدا کېدل، د زخم خرابېدل. نمجن کېدل، نمي پېدا کول.
**نو** :- (نُو) (حرف) د جزا تورے دے. د بیا معنې ورکوي. لکه: ښه نو... د تکیه کلام کار ورکوي.
**نوا** :- (ن + وا) (اس، مو) دا لفظ عموماً د ,,نرخ،، سره یو ځاے راځي او د دغې لفظ په معنې کښې زور پېدا کوي. لکه: نرخ و نوا څنګه وو؟
**نوا** :- (ن + وا) (ف، اس، مو) اواز، صدا، سُر، تان، نغمه. ساز و سامان، روزي، خوراک، د موسیقۍ په دولسو مقاماتو کښې یو مقام.
**بې ـــ** :- بې ـــ (ف تر، صف) بې ساز و سامان، محرومه.
**په ـــ کول** :- شته من کول، ساز و سامان ورکول.
**په ـــ کېدل** :- شته من کېدل، ساز و سامان حاصلول.
**نوا** :- (ن + وا) (ف، اس، مو، ج ـــ ګانې) اواز، غږ، ږغ، صدا، د مرغو مرغانو ښکلي اوازونه، ساز و سامان.
**نواب** :- (نَ + نُ + وا + ب) (ف، اس، مذ، ج ـــ ان) نائب، نیابت کوونکے، د یو ښهر یا د علاقې حکمران، د عزت یو لوړ خطاب.
**ـــ جوړېدل** :- (و ـــ د ځان نه/څخه نواب جوړول). د بادشاه یا د حکومت د طرفه د ,,نواب،، خطاب موندل.
**د ځان نه /څخه ـــ جوړول** :- ځان نواب ګڼل، ځان لوے سړے ګڼل، د نوابانو په شان عادتونه خپلول، نور خلق د ځان نه /څخه کم ګڼل.

**ـــ صيب** :- ( ــــ صي + ب )( پ تر ،اس ،مذ ) د يوې علاقې حاكم . خطاب هغې سړي ته چې د نواب خطاب لري . ( طنزاً ) غريب سړے چې د شته منو چارې كوي .

**نوابغ** :- ( ن + وا + ب + غ )( ع ،اس ،ج ) د ,, نابغه ،، جمع ده .

**نوابي** :- ( نو + وا + بي )( ف تر ،اس ،مو ) حكمراني ، حكم چلونه . هغه علاقه كومه چې د يو نواب د حكم تر لاندې وي .

**نوابي** :- ( ن + وا + بي )( ف تر ،اس ، مو ) د ,, نواب ،، عهده يا خطاب .ډېره دولتمندي ، شته مني ، د نوابانو په شان عادت ، فضول خرڅي ، اسراف ، د خپل طاقت نه / څخه زيات خرڅ كول .

**نواح** :-( ن + وا + ح )( ع ،اس ،ظر ) خواؤ شا ، شاو خوا ، نزدې علاقه . چار چاپېره علاقه مضافات . ( اصل لفظ نواحي دے چې د ,,ناحيه ،، جمع ده ) .

**ګـرد و ــــ** :- ( ګ + ر + دو ــــ )( ف تر ،اس ،ظر ) د خواؤشا علاقه ، چارچاپېره علاقه .

**نواحت** :- ( ن + وا + خ + ت )( ف ، صف ، مذ ، مو ــه ) موافق ، مطابق ، برابر ، لايق . وهل ، وهنه ، ( لكه : ډول وغېره ) پالنه روزنه ، نوازش ، غږونه ( د كوم ساز .

**نواحته** :- ( ن + وا + ح + تَ )( ف تر ، اس ، مف ) غږولے ، ډغولے ،وهلے ( لكه : ډول وغېره ) پاللے ، روزلے .

**نـواحي** :- ( ن + وا + حـي )( ع ، اس ، ج ) د ,, ناحيـه ،، جمـع ده .د خواؤشـاه علاقې ، مضافات .

**نوادر** :- ( ن + وا + د + ر )( ع ، اس ، ج ) د ,, نادره ،، جمع ده . نادر څيزونه ، كم يابـه څيزونـه ، داسې څيزونـه چې نـهٔ مونـدے كېـږي ، عجيبـه عجيبـه څيزونه ، ډېر قيمتي څيزونه .

**نوار** :- ( ن + وا + ر )( صف ، مذ ، مو ــه ) د ,, وران ،، اړولے شكل دے همدغه معنى لري .

**نوار** :- ( ن + وا + ر )( اس ، ج ) هغه سپڼ سينه پټه چې كټونه او كرسۍ وغېره پرې بڼولے شي .

**نوارو** :- ( ن + وا + رو ) د ,, نوار ،، بدل شكل ،چې د مغيره ؤ توړو سره راځي .لكه : د نوار د كټ .

**نواروونكے** :- ( ن + وا + ر + وو + ن + كے )( و ــــ ورانوونكے ) .

**نوارول** :- ( ن + وا + ر + ؤ + ل )( مص ) د ,, ورانول ،، بدل شكل دے . ( و ــــ ورانول ) .

**نواره** :- ( ن + وا + رَ )( اسم ،مفرد ،مو ) سپينه كلۍ ،سپينه غوټۍ ،شګوفه .

**نواري** :- ( ن + و + ا + ر + ي )( اسم ،ج ، مفرد ) پوشاك ، جامې ، زړوكي ، كالي ، لباس ، اغوستن .

**نوارېدل** :- ( ن + وا + رې + د + ل )( و ــــ ورانېدل ) .

**نوارېدونكے** :- ( ن + وا + رې + دو + ن + كے )( و ــــ ورانېدونكے ) .

**نوارېدهٔ** :- ( ن + وا + رې + د )( و ــــ ورانېدهٔ ) .

**نوازش** :- ( ن + وا + ز + ش )( ف تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ونـه ) مهرباني ، عنايت ، لطف ، كرم .

**نواسير** :- ( ن + وا + سي + ر )( ف ، اس ، مـذ ) د يـو مـرض نـوم دے .چې د كونې په خوا وشا كنبې زخم او سوري جوړ شي .

**نوباوه** :- ( نـو + بـا + وَ )( صف ، مـو ) تـازه راسبدلې مېوه .هغه ټوكرۍ چې باغوان په كنبې انولې مېوه او ګلونه باچا له وړي .

**نوبت** :- ( نو + ب + ت )( ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) وار ، ځل ، دوره .

**نوبت** :- ( نو + ب + ت )( ف ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) نغاره ، نقاره .

**په ــــ نوبت** :- ( پ ــــ نو + ب + ت )( فپ تر ،اس ،ظر ) په وار وار .

پــه نوبت نوبت مې وليدې دلبرې
يا د تورو وښتو عشق رويا د خال ( خوشحال )

**ــــ خانه** :- ( ــــ خا + نَ )( ف تر ،اس ،مو ،ج ــــ نې ) هغـه ځـاے چېرتـه چې **نوبت** يا توپتونه كښېښودے او غږولے شي .

**ــــ غږول** :-نغاره وهل ، نقاره غږول .

**ــــ كېدل** :-دور راتلـل ، وار راتلـل ، دوران كېـدل ،حكومت كېـدل ، بادشـاهي كېدل .

**نوبتي** :- ( نو + ب + تي )( ف تر ، صف ) په نوبت راتلونكے ، واريز ، په مقرره وار راتلونكے . نغاره غږوونكے ، نغارچي ، څوكيدار ، كوتل اس .

**نوبـل** :-( نـو + ب + ل )( انګ ، صـف ) شريف ، معـزز ، لـوے خاندان والـه . رئيس .

**نوبـل** :-( نـو + ب + ل )( اس ، مـع ) د سـويډن يـو كيميـادان چـا چـې نـائټروجن ګليسرين مكمل كړے او ډائنامائيټ ايجاد كړے ؤ .دهٔ د مرګ په وخت اوولس لكه پونډونه پرېښودي وو او وصيت ئې كړے ؤ چې ددې رقم نه / څخه د هر كال پنځو كسانو له انعام وركولے شي .( و ــــ نوبل پرائيز ) .

**نوبـل پرائيـز** :- ( نـو + ب + ل + پ + را + ئ + ز )( انګ تر ،اس ،مذ ،ج ــــ ونه ) يـو لوے انعام دے چې هر كال پنځو داسې كسانو لـه وركولے شي څوك چې په طبيعات ، كيميا ، طب ، ادب او د امن په كار كنبې نمايانه كارنامـه سرته ورسوي .دا انعام د ۷۵۰۰ پونډونو وي .( و ــــ نوبل ) .

**نوبر** :- ( نو + ب +ر )( اس ،مذ ) ذائقه ، خوند ، مزه .

**ــــ كتل** :- ذائقه كتل ، خوند معلومول .

**نوبه** :- ( نو + بَ )( و ــــ نوبت ) .

**نوبهار** :- ( نو + ب + ها + ر )( ف تر ،اس ،مو ،ج ــونه ) نوے سپرلے ، د سپرلي سر .هغهٔ څيز چې نوے سپرلے پرې راغلے وي .

**نوټ** :- ( نو + ټ )( انګ ،اس ،مذ ،ج ــــ ونه ) د رويو د بدلون حكومتي كاغذ ، كرنسي نوټ ، لوټ .لكه : د سلو روپو نوټ .

**ــــ ماتول** :- د لوے نوټ په ځاے وارهٔ نوټونه يا پيسې ټكې اخيستل .

**نوټ** :- ( نو + ټ )( انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) ياداشت ، يادګېرنه .

**ــــ بک** :- ( ــــ ب + ک )( انګ تر ،اس ،مذ ، ج ــونه ) هغه كتاب يا كتابګرے چې په كنبې خپل ياداشتونه ليكلے شي .

**ــــ كول** :- د ياداشت په طور ځان سره ليكل . يا كومه خبره په خپل ذهن كنبې حفظ كول . په خپله مشاهده كنبې راوستل .

**ــــ ليكل** :- د ياداشت په طور وړوكے شان كاغذ ليكل .يادونه كول ، خپله رائې په مختصرو الفاظو كنبې ليكل .

**ــــ ليكـل** :- ياداشت ليكـل . د كتـاب پـه غـاړه يـا ښكتنۍ حاشيه كنبـې د يادګېرنې په طور څهٔ خبره ليكل .

**نوټري** :- نو + ټ + ري )( انګ ، صف ) مشهور ، قابل اعتماد .

**ــــ پبلک** :- ( ــــ پ + ب + ل + ک )( انګ ، تر ، اس ، مذ ) هغه كس يا كسان كوم چې د حكومت د طرفه اعتباري ګڼلے شوي وي او په دستاويزاتو د هغوي تصديق اعتباري ګڼلے شي .

**نوټس** :- ( نو + ټ + س )( انګ ، اس ، ج ) ياداشتونه ، ليكلے شوې ضروري خبرې اقتباسونه . هغه كتاب چې په كنبې د بل كوم كتاب يا كتابونو څخه اهمې خبرې او ضروري برخې راجمع كړے شوي وي .

**ــــ اخيستل** :- د چا په جرم د هغه خلاف كاروائي كول .

**ــــ بورډ** :- ( ــــ بو + ر / ړ + ډ )( انګ ،تر ،اس ، مذ ، ج ــونه ) هغه تخته په كومه چې اعلانونه زوړندولے يا چسپان كولے شي .

**—— ورکول** :- په سرکاري ډول ،د رجستري ډاک په ذريعه چا له د کومې خبرې خبرداره ورکول- په سرکاري ډول ، خبرداره کول ، مطلع کول-

**په —— کښې راتلل** :- په توجه کښې راتلل ، ورمعلومېدل-

**نوټېشن** :- (نو + ټې + ش + ن )(انګ ، اس ، مذ ) الفاظ يا اعداد په علامتونو کښې ليکنه- د موسيقۍ سُر يا دُهن په خاصو علاماتو کښې ليکنه ، علامت بندي د موسيقۍ د ليک خاص علامات-

**نوجن** :(نو+ج + ن )(پ تر ، صف ، مذ ،مو ـــه ) نو لرونکې ، نمجن ، نمي لرونکې مرطوب-خوړ والې لرونکې-

**نوجوان** (نو + ج + وا + ن )(ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان ) نوې زلمې شوې ، نوی ځوانی ته رسېدلې -مطلق زلمې-

**نوچک** :- (نو + چ + ک )(اس ، مذ ) پرخه ، شبنم - نوې ، جديد ، نوې راوتې ، تازه راټوکېدلې- نوجوان ، نوې ځوان شوې-

**نوچکه** :- (نو + چ+ک ) د ,, نوچک ،، تانيث دې - وړه نوچۍ ، وړوکې پيشه وره ډمه-

**نوچۍ** :- (نو + چ + ى )(اس ، مو ) هغه پېشه وره ډمه کومه چې زړې ډمې د پېشې دپاره ساتلې وي-

چې وخت د کار راشي نو نوچۍ له غُل ورشي- (متل )-

**نوځه** :-(نو + (ت) سې )(و ـــ نوسې ) نوسې ، د زوئي زوې-

**نوح** :- (نو + ح )(اس ، مع ) د مشهور پيغمبرنوم ،چې ذکر ئې په قرآن مجيد کښې راغلې دې او په تورات وغيره کښې هم راغلې دې -ددهٔ په وخت کښې يو لوې طوفان راغلې ؤ-

**طوفانِ ـــ** :- (طو + فا + نِ ـــ )(عف ، تر ، اس ، مذ ) هغه مشهور طوفان چې د حضرت نوح ع پيغمبر په وخت کښې راغلې ؤ-

**نوحه** :-(نو + حَ )(ع،اس ،مو ، ج ـــ حې ) په مړي باندې ژړا ، ژړا فرياد ، په مړي باندې د هغه خبرې يادول يا ئې په ژړا ژړا کښې صفتونه کول-

**—— خوان** :- (ـــ خ + وا + ن )(و ـــ نوحه ګر )-

**—— خوانه** :- (ـــ خ + وا + نَ )(فپ تر ،اس،مو،ج ـــ نې )(و ـــ نوحه ګره )-

**—— خواني** :- (ـــ خ + وا + ني )(و ـــ نوحه ګري )-

**—— کول** :- په مړي ژړل / جړل ، د مړي خبرې او صفتونه يادول او ژړل-

**—— ګر** :- (ـــ ګ + ر )(ف تر ،اس،مذ ،ج ـــ ان ) هغه سړې چې په مړي باندې نوحه وائي-د مړي د صفتونو اشعار يا وېناګاني په افسوس سره وائي- مرثيه ګو -هغه پيشه ور سړې يا ښځه څوک چې په اجرت د نورو خلقو په مړو نوحه وائي-

**—— ګري** :- (ـــ ګ + ري )(ف تر ، اس ، مو ) نوحه وئينه ، د نوحو د ويلو پيشه ، مرثيه ګوئي-

**—— ګره** :- (ـــ ګ+رَ )(عپ تر ،اس،مو،ج ـــ رې ) د ,, نوحه ګر ،، تانيث دې

**—— ويل** :- په مړي باندې يا د کوم مړ شوي سړي / ښځې په صفت کښې شعرونه ويل يا وېناګانې کول ، مرثيه وئيل-

**نوخالي** :- (نو +خا + لي )(پ تر ،اس،مو ) د تاش د يوې لوبې نوم-

**—— کول** :- د تاش هغه لوبه کول چې نوخالي نومېږي-

**نوخاسته** :-(نو + خا + س + تَ )(ف تر ، صف ) نوې پورته شوې ،نوې راټوکېدلې-

بلبلان په ښاخ د ګلو خوښي مومي

مردمان په نوخاسته ګلزار د ژبې (حافظ )

**نوخط** :-چې نوې نوې ږيره بربېت راټوکېدلي وي -نوې زلمې شوې چې ايله ايله ئې ږيره راغلې وي-شاه زلمې ،

**نوخول** :- (نو + خ + ؤ + ل )(مص ) د چا په زړهٔ کښې خواهش پېدا کول، خواهش رالړزول ، د کوم څيز يا کار ډېر زيات خواهشمند کېدل ، ډېر مشتاقه کېدل

**نوخېدل** :- (نو + خې + د + ل )(مص ) په زړهٔ کښې خواهش راولاړېدل ، ډېر زيات خواهشمند کېدل ، ډېر زيات مشتاقه کېدل-

**نوخېز** :- نوې پورته شوې ،نوې ځوان شوې-

**نودارد** :- (نو + دا + ر + د )(ف تر ،اس،مذ ، ج ـــ ان ) نوې راتلونکې ، اوپره ،مېلمه ، اجنبي- (مجازاً : نوې زېږېدلې ماشوم-

**نوراني** :- (نُ + را +ن +ي )(صـف ،مفرد ،مــذ ) چمکــدار ، روڼ ، منــور ، پرقېدونکې

**نورنج** :- (نو + ر + ن + ج )(و ـــ نارنج )-

**نوره** :- (نو + رَ )(و ـــ ناره يا نعره )-

**نورېدل** :- (نو + رې + د +ل )(مص ) په بل شان کېدل ، بدلېدل په کښې بدلون راتلل-

**نوړ** :-(نو + ګ/؟ )(اس ، مذ ) اصل ، حقيقت ، عين-

**نوړې** :- (نو + ګې / ژې )(صف ) نګه ، خالص ، بوب-

**نوړې** :-(نو + ګې / ژې )(اس ، مذ ، ج ـــ ړي ) انتروشې ، انتهوشې-

**نوړې** :-(نو + ګې / ژې )(اس،مذ ، ج ـــ ړي) اصل ،جنس ، نوع ، نوغې-

**—— اېستل** :-

**—— باسل** :-

**—— وېستل** :- نوغې اېستل،بېخ اېستل،بېخي ورکول،نوع يا جنس ورکول-

**نوړې** :-(نو + ګې / ژې )(و ـــ نوغې ) ماده-

**نوړېدل** :- (نو + ګې / ژې + د + ل )(مص )(و ـــ نوړ کېدل )-

**نوړېدل** :- (نو + ګې / ژې + د + ل )(مص ) انتروشې کول ، انتهوشې کول-

**نوس** :- (نو + س )(اس،مذ ،ج ـــ ونه ) د ,, نفس ،، بدل شکل دې-

**نوستائې** :- (نو + س + تا + ئې )(و ـــ ناستې )-

**—— پوستائې** :- (ـــ پو + س + تا + ئې )(و ـــ ناستې پاستې )-

**نوستل** :- (نُ + س + ت +ل )(مص ) خورول ، په هوا کښې خورول ، پراګنده کول ، پاشل-

**—— خاورې په سر** :- (پ تر ) غم او افسوس څرګندول - (ځينې خلق د ډېر زيات غم د اظهار دپاره خاورې په سر نوستل، په سر لوستل ، په سر بادول )-

**نوستنه** :- (ن + س + ت + نَ )(حمص ) خورونه ، په هوا کښې اخوا دېخوا خورونه ، پراګنده کونه ، پاشنه-

**نوستونکې** :- (نُ + س + تو ن+کې )(پ تر ،اس،فا ،ج ـــ کي ) خوروونکې ، په هوا کښې خوروونکې پاشونکې ، پراګنده کوونکې-

**نوسخان** :- (نُ + س + خا + ن )(اس ،مذ ،ج ـــ ونه ) د ,, نقصان ،، بدل شکل دې- (و ـــ نقصان ) کچه حمل غورزونه-

**نوسخاني** :- (ن + س + خا+ ني )(پ تر ، صف ) د ,, نقصاني ،، بدل شکل دې -نقصان رسوونکې-

**نوسه** :- (نو + سَ )(اس ، مو ) نمجنه ، زمکه-

**نوسه** :-(نُو + سَ )(اس ، مو ) کنجي ، کليد-

**نوسه** :- (ن + و + سَ )(اس،مو،ج ـــ سې ) څکه ، ذائقه-

**نوسۍ** :-(ن + و + س + ئ )(پ ،اس،مو ) د ,, نوسې ،، تانيث دې- (جمع ئې ,,نوسياني ،، هم راځي )-

**نوسي** :- (نو + سي )(صف ) د ,, نفسي ،، بدل شکل دې - نفس سره تعلق لرونکې ، نفس ته منسوب - نفساني خواهشاتو پسې تلونکې -مجازاً : نافرمانه-

**نوسی** :- (ن + و + سے )(اس ، مذ ، ج ــــ سي) لمسے ، نواسه.

**نُوسے** :(نُو + سے )(اس ، مذ ، ج ــــ سي) ورو کې چمتـه چې وبښـتـهٔ پـرې اوباسي ، چمتـه ، اتش گیر.

**نوش** :-(نو + ش )(ف اس ، مذ ) د څښـکلو څیـز ، د ښـهٔ خونـد څیـز . شـهد ، شات. تاریاق ، تریاق. ابِ حیات.

**ــــ دارو** :- (ــــ دا + رو )(ف تـر ، اس ، جـم ) تریـاق ، زهـر مهـره . (مجـازاً ) شراب.

گل کرم ازغي ترې زېږي
نوش دارو مې زهر کېږي (خوشحال)

**ــــ کول** :- څښـکل ، عموماً د عزت دپاره د بل په حقله وئیلے شي.

ش! شراب و عرفان نوش کړه
زړهٔ د عشق په مے مدهوش کړه (حافظ)

**نوشابه** :-(نـو + شـا + بَ)(ف تـر ، اس مـو ) ابِ حیـات ، د ژونـد اوبـهٔ . د یـوې ملکې نوم چې سکندر رومي راخلاصه کړې وه. د زنانـهٔ و پـه نـوم کښـې راځي

**نوشادر** :- (نـو + شـا + د + ر )(اس ، جـم ) د یـو مشـهور مرکـب نـوم دے .چې پـه داروګـانو وغېـره کښـې پکـارولے شـي د ایمـونیم او د کلـورین مرکـب ، نوسادر.

**نوشا نوش** :- (نـو + شـا = نـو + ش )(ف تـر ، اس ، تـف ) نـوش پسـې بـل نـوش ، جـام پسـې بـل جـام ، پرلـه پسـې جامونـه .ډېـر زیـات شـراب څښـکنه . د شرابیانو اوازونه.

**نوشت** :- (ن + و + ش + ت )(ف ، اس ، مذ ، ج ــــ ونـه ) لیـک ، تحریـر ، لیکنـه ، کتابت.

**ــــ و خواند**:- (ــــ (تو) خ + وا + ن + د )(ف تر ،اس ،مذ ) لیـک او لوست ، لیکنـه او لوستنه ،عهد نامه وغېره په لیک کښې راوستنه.

**ــــ و خواند کول** :- لیک او لوست کول .(مجازاً ) د کومې عهد نامې یـا د لـېن دېن وغېره په لیک کښې راوستل.تمسک یا دستاویز لیکل.

**سر ــــ** : (س + ر ــــ )(ف تـر ، اس ، مـذ ، ج ــــ ونـه ) پـه خپـل سـر تېـر شـوي حالات ، سرګذشت.

**نوشته** :- (ن + و + ش + تَ )(ف ، اس ، مـو ، ج ــــ تې/ جات ) لیکلے شـوے ، لیکلے څیز ، تحریر کاغذ ، لیکلے دستاویز.

**ــــ تقدیر** :- (ــــ (ئې) ت + ق + دي + ر )(ف تر ، اس ، مذ ) د تقدیر لیـک ، پـه قسمت کښې لیکلے شوے.

**ــــ دیوار** :- (ــــ (ئې) دي + وا + ر )(ف تر ، اس ، مذ ) په دېوال لیکلے څیـز ، هغه نصیحت وغېره چې په دېوال لیکلے شوے وي.

**ــــ کول** :- لیکل،په لیک کښې راوستل.په تحریر کښې راوستل.

**ــــ وچولي** :- (پ تر ،اس مو ) د تندي لیک ، مجازاً قسمت ، د تقدیر لیک.

نۀ به یو دم عمر زیات شي نۀ دانه له رزقه
دواړه مقدر دي ستا په وچولي نوشته (حافظ)

**نوشل** :- (نو +ش + ل )(مص ) نوش کول ، څښکل ، خوړل.

**نوشیروان** :- (نـو + شـي + ر + وا + ن )(اس ، مـع ) د ایـران د یـو مشـهور بادشـاه نوم چې د خپل عدل او انصاف په وجه ډېر مشهور دے.

په جهان کښې که حجاج که نوشیروان ؤ
هــم داد او دا بېداد شــــو ځنې پاتې (خوشحال)

چې نوشیروان باچـا وي او بختـک ئـې وزیـر وي نـو ډېـر ملکونـه بـه وران اووېني (متل)

**نوشیروان کېدل** :- عدل او انصاف کښې یګانه یا مشهورېدل.

په انصاف په عدل به تهٔ نوشیروان شې
هر عمل کـه د خپـل ځان په ترازو کړې (رحمان بابا)

**نوشین** :-(نو + شي + ن )(ف تر ، صف ، مذ ، ج ــــ ه ) خـوږ ، ښـهٔ خونـد لـرونکے ، شیرین ، ښې ذائقې واله.

**نوښته** :- (ن + و + خ /ش + ت )(و ــــ نوشته )(دا املاء درسته نهٔ ده .ځکه چې نوخته هېڅوک نهٔ وائي ).

**نوښخ** :-(نو + خ/ش + خ )(اس ، مذ ، ج ــــ ونه ) د کبـانو (مهیـانو ) د نیـولو کونډه . هغـه سیخ چې سر ئې تاؤ شـوے وي او نانوائیـان پـرې ډوډۍ د تنور نـه راوباسـي . هغـه کونـډې والـه سـیخ چـې قصـابان پـرې غوښـې زوړندوي.

**نوښي** :- (نو + خي / شي )(اس ، مذ ، ج ــــ ښي ) هغه لړ اور چې لمبـه نهٔ کـوي. هغه لړ اور چې د اور د بلولو دپاره لرګیو ته اېښـودل کېـږي او لـه خولـې د هر نفس پسې راخېژي چې حسن اېښي دي د زړهٔ ته نوښي.
(زړه پانګه ، اسلم لون )

**نوع** :- (نو + ع )(ع،اس،مذ ،ج ــــ ونه / انواع ) قسم ، جنس،ذات.

**ــــ انسان** :- (ــــ (ع ) ا + ن + سا + ن ).

**ــــ انساني** :- (ــــ(ع) ا + ن + سا + ني )(عف ، تر ، اس ، مذ ) بني ادم ، ټول بني ادم.

**ــــ پالونکے** :- (ــــ پا + لو + ن + کے )(عپ تر ،اس ، فا ،ج ــــ کي )د خپـل جنس پالنه کوونکے ، د خپل جنس مرسته او طرفداري کوونکے.

**ــــ پرست** :- (ــــ پ + ر + س + ت )(و ــــ نوع پالونکے.

**ــــ پرستي** :- (ــــ پ + ر + س + تي )(عف ،تر ،اس ، مو ) د خپل نوع یـا جنس پالنه کول ، د خپل نوع یاجنس مرسته او پره کونه.

**ــــ خواهي** :- (ــــ خ + وا + هي )(ف تر ، اس ، مـو ) د خپـل نـوع پالنـه ، د خپـل نوع مرسته او طرفداري.

**ــــ دوستي** :- (ــــ دو + س + تي )(ف تر ،اس ، مو )(و ــــ نوع خواهي ).

**ــــ نوع** :- (ــــ نو + ع ) قسم قسم ، رنګ رنګ.

**نوعه** :-(نو + عَ ) د ,, نوع ،، بـدل شـکل دے .چې ځینـو مغیـره ؤ تـورو سـره راځي.لکه : شل نوعه.

**نوعي** :-(نو + عي )(عف ، تر ، صف ) نوع سره تعلق لرونکے ، نوع یا جنس تـه منسوب

**نوعیت** :-(نـو + عـي + ي + ت )(ع ، اس ، مـذ ، ج ــــ ونـه)قسـم ، خصوصـیت ، تخصیص

**نوغ** :- (نُو + غ )(اس ، مذ ) نوے زېږېدلې سخے.

**نوغاړے** :- (نُو + غا + ړے )(اس ، مذ ) هغـه (ولاړ ) غـنم ي پـه خپلـه کښـې یـو بل سره نښتي او الوول شوي وي.

**نوغي** :-(نو + غي ) د ,, نوغے ،، جمع ده. د ,, نوغے ،، بـدل شـکل دے .چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ــــ نوغي** :- (نو + غي ) (پ تر ، صف ) داغ داغ ، داغدار ، داغونـو یـا ټـاکو واله.

**ــــ نوغي کېدل** :- اغ داغ کېدل ، ټاکي ټاکي یا داغدار کېدل.

**نوغے** :-(نو + غے )(اس ، مذ ، ج ــــ غي ) علامـت ، داغ اصـل ، جـړه ، ویـخ ، نوع ، جنس.

**ــــ اېښودل** :- داغ اېښودل.بنیاد اېښودل.

**ــــ لټول** :- عیب لټول ،ګناه لټول ،خطا لټول.

**ــــ نیول** :- اعتراض کول ،ګوتمنډي کول.

**نوکانو** :- (نو + کا + نو )د ,, نوکانو ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي

**نوکر** :-(نو + ک + ر )(اس ،مذ ،ج ــ ان ) ملازم ، خدمتګار .
**ــــ پیشه** :- (ـــــ پې + شَ)(ف تر ، صف ) هغه سړے چې پیشه ئې ملازمت وي هغه سړے چې خپله روزي په ملازمت ګټي .
**ــــ کول** :- ملازم کول ،په ملازمت کښې اخستل .
**ــــ کېدل** :- ملازم کېدل ،ملازمت موندل ،ملازمت اختيارول .
**نوکراړے** :- (نو + ک + را + ړے )(اس،مذ ) د سختې يخنۍ له کبله د لاس ستغېدنه او سوے .
**ــــ کول** :- د سختې يخنۍ له کبله د لاس ستغېدل او سوے کول .
**ــــ کېدل** د سختې يخنۍ له کبله د لاس ستغېدل يا سختېدل .
**نوکرځے** :- (نو+ک+ر (د) ځے )(اس ، جم ) نکريځے ،نکريزې ، حنا .
**نوکرکے** :-(نو + ک + ر + کے )(اس ، مذ ) ډېر وړوکے ،ډېر زيات وړوکے ، ډېر زيات لږ .
**نوکره** :- (نو + ک + ر )(اس ، مو ، ج ــــ رې ) د ,, نوکر ،، تانيث دے .
**نوکري** :- (نو + ک + ري )(اس ، مو ) ملازمت ، خدمتګاري .
**ــــ لګېدل** :- نوکر کېدل ، ملازم کېدل ، مذاقاً کوم کار په حواله کېدل ، بګار ورحواله کېدل . د فوځ يا د پوليس د سپاهي په پهره مقررېدل .
**ــــ ورکول** :- نوکر کول ،په ملازمت کښې اخيستل . ډيوټۍ پوره کول ، فرض سرته رسول , خصوصاً د پوليس يا د فوځي پهره ورکول .
**نوکرۍ** :-(نو + ک + ر + ۍ ) د ,, نوکري ،، جمع ده د ,, نوکرۍ ،، بدل شکل دے .چې د مغيره ؤ تورو سره راځي .
**د ــــ نه /ځخه وتل** :- موقوف کېدل ،نوکري نه پاتې کېدل .
**نوکرے** :- (نو+ک +رے )(اس،مذ ) برص،برګے (مشهور مرض) .
**نوکرے** :-(نو + ک + رے )(و ــــ نوکارے ) .
**نوکړے** :- (ن +و+ک+ړے )(اس ، مو ، ج ) کړے ، (د لاس کالي )
**نوکلسيني ټوپک** :- (نو+ک+ل+سي+ني+ټو+پ+ک )(انګ،تر،مذ) هغه ټوپک چې د نکلسن په وخت کښې دې هېواد ته راغلے وو .
**نوکو** :-(نو + کو ) د ,, نوکے ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي .
**نوکو** :- (نو + کو ) د ,, نوکونو ،، بدل شکل دے چې د مغيره ې تورو سره راځي .
**ــــ تر کوټې** :- (ـــ ت +ر+کو+ ټې )(پ،تر،صف )د سر نه تر پښو پورې ، ټول همه .
**نوکونه** :- (نو + کو + نَ ) د ,, نوک ،، جمع ده ، نوکان .
**ــــ جنګول** :- دوه کسان سره جنګول .د دوه ؤ کسانو جنګ د زياتېدلو خواهش لرل (يوه پخوانۍ عقيده ده .چې دوه کسان سره په جنګ شي .نو که بد خواه سړے خپل نوکونه يو بل سره مرې نو د هغوي جنګ به لا تود برې ځکه ځيني خلق عملاً هم د مخالفو د جنګ په وخت خپل نوکونه جنګوي چې د دوي جنګ زيات شي ) .
**ــــ خوړل** :- خپل نوکونه په غابښونو پرې کول . (د ځينو خلقو عادت دے ) .
**د ــ زور لګول** :- مجازاً خپل پوره زور لګول ، خپل پوره وس کول .
**ــــ اخيستل** :- د نوکونو زياتي سرونه پرې کول ، نوکان پرېکول .
**ــــ وتل ، په کار کښې** :-ډېر زيات مشقت او خواري کول .
**نوکه** :-(نو + کَ ) د ,, نوک ،، يو قسم جمع ده چې ځينو مغيره ؤ تورو سره راځي . د ,, نوک ،، بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي .
**د سر نه / ځخه تر ــــ** :- (پورې ) د سر نه تر پښو پورې ، ټول همه ، سرتر سره .
**نوکۍ** :-(نو + ک + ۍ )(صف ، مو )د ,, نوکې ،، تانيث دے .
**ــــ سترګې** :- (ـــ س + ت + ر + ګې )(پ تر ،اس،ج ) وړې وړې سترګې
**نوکے** :- (نُو+کے )(صف ) لږ ، ډېر لږ ، ډېر کم ، ډېر لږ مقدار کښې .
**ــــ ښخول** :- په خپل ځاے د کلک ودرېدلو دپاره د ځاروي خپلې نوکې زمکې ته اړمول .کلک په ځاے ودرېدل ، خپل ځاے نۀ پرېښودل .مجازاً : خپل ټول زور لګول .
**ــــ لګول** :- (و ــ نوکې ښخول ) .
**ــــ نۀ لګېدل** :- په خپل ځاے د کلک ودرېدلو دپاره نوکې په زمکه کښې نۀ لګېدل .باوجود د خپل پوره کوښښ په خپل ځاے قايم نۀ پاتې کېدل . مخ په شکست يا مخ په زوال کېدل .
**ــــ نوکې** :- (ـــــ نو + کې )(پ تر ،صف ) لږ لږ ، کم کم ، په ډېر کم مقدار کښې . لکه : نوکې نوکې اوبۀ اچوه .
**ــــ نوکې کول** :- وړوکې وړوکې کول ، وړې وړې ټکرې جوړول ، وړې وړې ټوټې کول .
**ــــ نوکې کېدل** :- وړې وړې ټوکړې کېدل ، ټکرې ټکرې کېدل ، ټوټې ټوټې کېدل ، ذره ذره کېدل .
**نوګ** :- (نو + ګ )(و ــــ نوړ ) .
**نوګنه** :-(نو + ګ + ن + نه )(اس،مو،ج ــ رې ) يو قسم ازغن /اغزن بوټے دے .کروړه
**نوګے** :- (و ــــ نوغے ) .
**نوګے** :- (نو + ګے )(و ــــ نوړے ) .
**نولات** :- (نو + لا+ ت )(پ+حرف ) لعنت ، د نفرين کلمه .
**نولجن** : (نو + ل + ج + ن )(پ تر ،صف،مذ ،مو ــ ه ) غمجن ،غم زده ، پرېشانه ، ملول غم زپلے .
**ــــ کېدل** :- غمجن کېدل ،غمجنېدل ،فکر مند کېدل ، پرېشانه کېدل .غم کول .
**نولجنېدل** :- (نو + ل + ج + نې + د + ل )(و ــ نولجن کېدل ) .
**نولزوم** :- (نو + ل + زو + م )(پ تر ،اس،مذ )(و ــ نول او زول ) نول زول .
**نولژن** :-(نو + ل + ژ + ن )(و ــــ نولجن ) .
**نول** :- (نو + ل )(اس،مذ ،ج ــ ونه ) غم ،فکر ،پرېشاني ، زړۀ خوړنه .
**ــــ کول** :- غم کول ،فرياد کول ، زړۀ خوړل .
**نول** :-(نو+ل )(اس،مذ ) طور طريقه ، طرز ،انداز ،روش ،دستور .
**نولس** :-(نو + لْ + لَ + س )(اس ، عدد ) يو کم شل ،اتلس او يو .
**نولسم** :-(نو + لْ+ لَ+ س + م )(اس،عدد ،مذ ،مو ــ ه ) هغه چې په نولسمه درجه کښې وي .د اتلسو نه پس راتلونکے .
**نولکۍ** :- (نو + ل + ک + ۍ )(اس،مو )د ,, نولکے ،، تانيث دے .
**نولکے** :-(نو + ل + کے )(صف،مذ ،ج ــ کي ) بد لحاظه ، سپين سترګے ، ګستاخ .
**نولل** :- (نو + ل + ل )(مص ) نوستل ، پاشل .
**نولول** :-(نو+ل+ؤ+ل )(مص ) غمجن کول ،زهيرول ،تنګول ،پرېشانه کول .
**نولېدل** :- (نو + لې + د +ل )(مص ) غم کول ، غمجنېدل ، زړۀ خوړل ، زهيرېدل ، پرېشانه کېدل .
**نولے** :-(نو + لے )(اس،مذ ،ج ــــ لي ) د مږو د قسم مشهور ځناور .چې د مار سخت دښمن دے .راسو (هــ نيولا ) بلونګړے ، (هـ ګلهري ) .
**نوم** :-(نُو + م )(اس ،مذ ،ج ــ ونه ) اسم ، نام .
**ــــ اېستل / وېستل** :- مشهور کېدل ، شهرت موندل،نومور کېدل .
**ــــ بدنامول** :- بنۀ نوم خرابول ، بنۀ شهرت ته نقصان رسول .
**ــــ پرېښودل** :- ياد پرېښودل ، يادېدل ، لکه : بنۀ نوم پرېښودل .
**ــــ تلل** :- شهرت کېدل ، تر لرې لرې پورې مشهور کېدل ، شهرت موندل .
**ــــ پته** :- (ــــ پ + تَ )(پ تر ،اس،مو ) نوم او ځاے ځائيګے،نوم او نشان .
**ــــ په کندو کښې نۀ ځايدل** :- ډېر لوے شهرت لرل ، بنۀ نوم ئې تر لرې لرې

رسېدل

**ـــ حاصلول** :- (و ـــ نوم ګټل) .

**ـــ سره اینځي کېدل** : بدنامه کېدل ، تهمت پرې لګېدل.

**ـــ شرمول** :- عزت بربادول ، شهرت خرابول ، خراب مشهورتیا کول.

**ـــ شرمول، د پلار نیکهٔ** :- د خپلو مشرانو ښهٔ نوم بربادول ، د نېکو خلقو اولاد چې خراب کار وکړي نو وایهٔ شي.

**په ـــ کول** :- د چا په ملکیت کښې ورکول.

**په ـــ کېدل** :- د چا په ملکیت کښې راتلل ، د چا په ملکیت کښې ورکړے کېدل.

**ـــ نهٔ اخېستل** :- مجازاً : یادول ، خواهش لرل.

**ـــ وړل** :- (و ـــ نوم تلل) .

**ـــ ورکې** :- (ـــ و + ر + کې) (پ تر ، صف ، مذ ، ج ـــ کي) هغه چې نوم ئې ورک شوے وي.هغه چې نوم ئې نهٔ وي پاتې شوے.ګمنام.

**ـــ ورکېدل** :- معدوم کېدل ، نیش کېدل ، اولاد نهٔ پاتې کېدل ، بې اولاده کېدل.

**ـــ ورکېدل** :- د خلقو له یادو داسې وتل چې نوم ئې هم چاته نهٔ وي معلوم. ببخي ورکېدل ، نوم هم نهٔ پاتې کېدل.

**ـــ یادېدل** :- ښهٔ نوم یادېدل ، د ښهٔ کارونو له کبله ذکر کېدل.

**تش په ـــ** :- (ت + ش + پ ـــ) (پ تر ، تف) محض د نامې دپاره ، هغه چې اصلیت یا حقیقت نهٔ لري ، نام نهاد .

**خاص ـــ** :- (خا + ص) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) مخصوص نوم. اسم معرفه.

**د ـــ دپاره** :- (د ـــ د + پا + ر) (پ تر ، تف) د شهرت دپاره .ببخي ، بالک ، لکه : دا شے د نوم دپاره هم نهٔ پیدا کېږي.

**نوم** :- (نو + م) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د ګېډې په مېنځ کښې بند سُورے چې یو ماشوم د مور په ګېډه کښې پرې خوراک کوي او د پیدا کېدلو نه /څخه وروستو پرے کړے شي.ناف.

**ـــ پربوتل** :- د ګېډې نوم بې ځایه کېدل.

**ـــ پورته کول** :- د ګېډې نوم د بې ځانه کېدلو نه پس خپل ځا ے ته راوستل.

**نومبر** :- (ن + و + م + ب + ر) (انګ ، اس ، مذ) د عیسوي تقویم (کلینډر) یوؤلسمه میاشت.

**نومد** :-(نو + م + د) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) لوند ، نمجن.

**نومړ** :- (نو + م + ړ) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) نامزد ، موسوم ، نام برده ، د چا چې نوم اخستے شوے وي یا ذکر شوے وي.

**نومړل** :- (نو + م + ړ + ل) (مص) په نوم کول ، په ناغه کول.

**نومړے** :- (نو + م + ړے) (پ تر ، صف) نامزد ، موسوم.

ستا لـــه رحمه به زهٔ ولې نومیدي کړم
چې دې ځان دې د رحمان په نام نومړے (رحمان بابا)

نام برده ، نومړ.مشهور ، معروف.

**نومړے** :- (نو + م + ړے) (اس ، عدد) اولنے ، لمړے ، لومړے ، سابق.

**نومړے** :- (نو + م + ړے) (پ تر ، اس ، مف ، مذ ، ج ـــ ړي) په نوم کړے ، منسوب کړے.

نـــور څهٔ نهٔ ده عاشقي هومره پوهېږم
چې لمبه د اور پنا مې د عشق نومړے (حمید)

**نومل** :-(نو + م + ل) (مص) نوم کښېښودل.په نوم کول. نامزد کول.

**نومیات** :- (نو + م + یا + ت) (صف ، مذ ، مو ـــ) (کاکړ) نومیالے ، نومور ، مشهور ، نوموړے ، نامتو.

**نومیالۍ** :- (نو+م+یا+ل+ۍ) (پ تر ، اس ، مو) د „نومیالے،، تانیث دے.

**نومیالے** :- (نو + م + یا + لے) (پ تر ، اس ، فا ، ج ـــ لي) د نوم خاوند ، ښهٔ نوم لرونکے ، نامدار ، مشهور ، شهیر.

**نومېد** :- (نو + مې +د) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) د „ناامېد،، بدل شکل دے. ناامېده ، بې طمعې ، مایوس.

**نومېد** :- (نو + مې + د) د „ناامېد،، لنډیز شکل دے.

**نومېدل** :- نو + مې + د + ل (مص) نوم لرل ، په دغه نوم بللې کېدل ، موسوم „بودل،،.

**نومېدهٔ** :- (نو + مې + د) (حمص) نوم لرنه ، په نوم یادېدنه.

**نومېدي** :- (نو + مې + دي) (ف تر ، اس ، مو) د „ناامېدي،، لنډیز شکل دے.ناامېدي ، مایوسي ، طمع قطع کېدنه.

**نومېر** :- (نُ / نو + مې + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه/ ان) د یو قسم ګل نوم دے.

**نومېرل** :- (نو+مې+ر+ل) (مص) ټاکل ، مقررول ، تعین کول ، مشخص کول.

**نومېرلے** :- (نو + مې + ر + لے) (پ تر ، اس ، مف ، ج ـــ لي) مقرر کړے شوے ، متعین شوے ، ټاکلے.

**نومېیل** :- (نو + مې+ئ+ل) (مص) نوک کښېښول ، موسوم کول.

**نون** :- (نو + ن) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د پښتو ، اردو عربۍ فارسۍ وغېره ژبو د یو غږ (اواز) نوم.چې د „ن،، په شکل لیکلے شي.و ـــ „ن،،.

**نون** :- (نو + ن) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د „ن،، د توري نوم.چې د ژبې د سر او د برني غاښونو په خوا کښې کلکې اورۍ سره پیدا کولے شي.چې د پوزې لار هم ویره وي.

**نون** :- (ن + ؤ + ن) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) لوند ، نمجن ، نمناک ، مرطوب.

**نونخه** :- (نو ن + (ت) س) (اس ، مو ، ج ـــ خې) کمزوري ، نقاهت ، ضعف.

**نوند** :- (نو + ن د) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) لوند ، نمجن ، نمناک ، خوشت.

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے) (پ تر ، اس ، مذ) لوند والے ، نمناکي ، غمجني ، خوشت والے.

**نوندول** :- (نو+ن+د+ؤ+ل) (مص) لوندول ، خوشتول ، نمجن کول ، ترکول.

**نونکۍ** :- (نو+ ن+ک + ۍ) (اس ، مو) تنکۍ ، دانه.

**نونکئ** :- (نو+ن+ک+ئ) (اس ، مو) د غواؤ او ګډو وغېره د سم (نوکالو) چاؤدنه.

**نومے** :-(نو + مے) (پ تر ، صف) نوم واله ، نوم لرونکے ، موسوم به . لکه : ګل خان نومے سړے...

**نونه** :-نُو + نَ) (اس ، مو ، ج ـــ نې) دانه (د جوارو وغېره غلې) د ټوپک زخه.

**نونے** :- (نو + نے) (اس ، مذ ، ج ـــ نې) زخه ، د ټوپک د شپېلۍ په سر کښې وړوکې شان دانه.چې شیش یا نخښه پرې اخستے شي.

**نونے** :-(نو + نے) (اس ، مو ، ج) دانې (د جوارو وغېره) په بټ کښې ورتې شوې نینې. د ټوپک زخه.

**نونے** :- (نُو + نے) (اس ، ج) تنکۍ ، غټې تنکۍ ، چیچک.

**نووے** :- (نو + و + یے) (و ـــ ناوے).

**نوه** :-(نو + و) د „نو،، بدل شکل چې نورو الفاظو سره راځي . لکه : بې نوه سترګې.

**بې ـــ سترګې** :- (بې ـ س + ت + ر + ګې) (پ تر ، اس ، ج) هغه سترګې چې نمې نهٔ لري. مجازاً: بې حیا سترګې ، بې شرمه سترګې.

**نوها** :-(نو + ها) (صف) اوږے ، وږے ، ګرسنه.

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب) (پ تر ، اس ، مذ) اوږے توب ، لوږه.

**ـــ کول** :- اوږے کول ، ګرسنه کول.

**ـــ کېدل** :- اوږے کېدل ، وږے کېدل ، ګرسنه کېدل.

**نوي** :-(ن + وي) د „نوے،، جمع ده. د „نوے،، بدل شکل چې د مغیره ؤ

تورو سره راځي۔

ـــ **تازه** :- (ـــ تا + زَ) (پ تر ، اس ، مو) نوے خبر ، نوي خبره يا پېښنه۔

ـــ **ټپه** :- (ـــ ټ + پ) (پ تر ،اس،مو) مجازاً نوي رنګ خبره ،عجيبه خبره۔ (د سحر بانګ کښې مې نوې ټپه واورېده) (متل)۔

ـــ **زړه** :- (ـــ ز + ړ) (پ ، تر ،اس،مو) نوې يا زوړ خبر ۔ مجازاً: نوې او تازه خبر

**په ـــ ډول** :- (پ ـــ ډو + ل) (پ تر ،تف) په نوي طريقه ، په نوي انداز ۔

**د ـــ سره** :- (د ـــ س + ر) (پ تر، تف) بيا د سره ، سر دوباره ، بيا ، د اغاز نه/ څخه۔

**نوي** :- (ن + وي) (اس،عدد) څلورنيمې شلې ، لس کم سل۔

**نوي** :- (نَ + وي) (فعل) د ,, نهٔ وي ،، لنډيز شکل دے۔

**که ـــ** :- (ک + ه ـــ) (جمله) ,, که نهٔ وي ،، شرطيه جمله ده ۔که داسې نهٔ وي نو ــ يا داسې ونهٔ شي نو ــ۔

**نوے** :- (ن + وے) (اس ، عدد) جديد ، تازه ،ابتدائي ، د شورو۔

ـــ **ايسته** :- (ـــ ا + س + تَ) (پ تر ،مو،ج ـــ تې) د نوي څيز ايستنه ، نوې اختراع۔

ـــ **ايستنه** :- (ـــ اي + س + ت + نَ) (و ـــ نوے ايسته)۔

ـــ **بالغ** :- (ـــ با + ل + غ) (پ تر،صف،مذ،مو ـــ ه) نوے بالغ شوے ، نوے ځوان شوے۔

ـــ **توب** :- (ـــ تو + ب) (پ تر ،اس ، مذ) نوے والے ، جديديت۔

ـــ **کال** :- د کېلندر (تقويم) د يو کال د ختمېدو نه پس د بل شروع کېدونکے کال

ـــ **کول** :- د زوړ څيز په ځاے نوے څيز په استعمال کښې راوستل ۔زوړ څيز په نوي بدلول۔د موسم مېوه په اول ځل خوړل۔

ـــ **کېدل** :- جديد کېدل ،د زوړ څيز په ځاے نوے څيز راتلل۔

ـــ **کېدهٔ** :- (ـــ کې + دهٔ) (پ تر ،حمص) نوے کېدنه ، د زوړ څيز په ځاے د نوي څيز په استعمال کښې راتلنه ۔د نوي موسم مېوه په اول ځل خوړلے کېدنه۔

ـــ **مېلمه** :- (مجازاً) نوے زېږېدلے ماشوم۔

ـــ **مېلمه راتلل** :- ماشوم چا کره زېږېدل ، زوے پيدا کېدل۔

ـــ **نوزے** :- (ـــ نو + زے) (پ تر ،صف) دويم لفظ د تاکيد معنې ورکوي بالکل نوے ، ببخي نوے۔

**نويد** :- (ن+وي/وے + د) (ف ،اس ،مذ ، ج ـــ ونه) خوش خبرے ، زېرے ، بشارت۔

**نويستل** :- (ن + وي + س + ت + ل) (مص) نوے يستل ، نوے څيرے جوړول ، ايجاد کول۔

**نويستنه** :- (ن + وي + س + ت + ن) (حمص) نوے يستنه ، ايجاد کونه ، ايجاد ۔

**نويستونے** :- (ن + وي + س + تو +نے) (اس ،فا ،مذ ،ج ـــ ني) نوے يستونکے ، ايجاد کوونکے ، موجد ۔

**نويسته** :- (نو + وي + س + ت) (پ تر ،اس،مو ،ج ـــ تې) د ,, نوي ايسته ،، لنډيز شکل دے۔

**نويسم** :- (ن + وي + س + م) (صف،مذ ،مو ـــ ه) بنکاره ،بې ستره۔

لـــه احواله پوشيده ده

خپل طالب لره نويسمه (ارزاني)

**نويستنده** :- (ن+وي +س+ ن + د) (ف تر ،اس ،مذ ، ج ـــ ګـان) ليکـونکے ، کاتب ، په ليک کښې راوستونکې۔

**نويسنده** :- (ن+وي + س + ن + دَ) (ف ، اس ، فا ، مذ ، ج ـــ ګان) ليکونکے ، تحرير کوونکے۔

**نويسندي** :- (ن + وي + س + ن + دي) (ف ،تر ،اس،مو) ليکنه ، د ليکلوکار ، کتابت۔

**نوبل** :- (ن + وي + ل) (مص) د انګورانو بوټو لـه خاوره ورکول۔هغه اوبهٔ چې د انګورو وغېره د څانګو په پرېکولو راځڅېږي۔ژړا هم ورته وائي۔

**نوبلئ** :- (ن + وي + ل + ئ) (اس،مو) هغه ښځه چې د وادهٔ د بلنې خبر زنانهٔ ته ور رسوي۔

**نوبلے** :- (ن + وې + لے) (اس ،مذ ،ج ـــ لي) د وادهٔ د خوړې بلنه ، دعوتِ عروسي۔

**نوينه** :- (ن+وي+نَ) (صف ، مو) نوے ، تازه۔لکه : نوينه غوښنه۔

**نوينئ** :- (ن+وي+ن + ئ) (صف) نوے ، تازه ۔لکه : غوښنه چې نوينئ وي نو بل خوند لري او چې لاتدې شي نوبل خوند ۔

**نه** :- (ن + ه) فضول ، نه ، د انکار تورے دے ، لکه نشته۔

ـــ **رسېدل** :- (مص) د رسېدل مصدر څخه د نفي شکل دے۔ نهٔ ور رسېدل۔ مجازاً : مقابل کښې پاتې راتلل ۔ لکه : د خولې تر بوئي ئې نهٔ رسي ګلاب ۔نهٔ پوهېدل۔ لکه : مطلب ته نهٔ رسېدل۔

ـــ **سهي** :- (ـــ س + هي) (جمله) د اولنى خبرې د نفي د شکل په اظهار او د بلې خبرې د وړاندې کولو په وخت وئيلے شي۔ لکه : زر نهٔ سهي پينځهٔ سوه روپۍ راکړه۔

ـــ **ګډون** :- (ـــ ګ + ډو + ن) (پ تر ،اس ،مذ) نهٔ ورګډېدنه ، نهٔ ملاوېدنه۔

ـــ **لس** :- (ـــ ل + س) (پ تر،اس،عدد) نهـهٔ او لـس ، نـولس ، نـونس ، (عموماً ,, نولس ،، وئيلے شي)۔

ـــ **لسم** :- (ـــ ل + س + م) (پ تر ، اس ، عدد ، مذ ، مو ـــ ه) د اتلسو نه پس جخت نمبر ، درجه وار وغېره ، نولسم ۔ (عموماً نُولسم وئيلے شي)۔

ـــ **ليدونکے** :- (ـــ لي +دو+ن+ کے) (پ تر ،اس،فا ،ج ـــ کي) هغه چې نهٔ وينې ۔ ړوند۔

ـــ **مطابقت** :- (ـــ م + طا+ ب + ق + ت) (عپ،تر ،اس،مذ) د مطابقت نيشتيا ، عدم مطابقت۔

ـــ **معلومېدونکے** :- (ـــ م +(ع) +لو+ مې+ دو+ ن + کے) (پ تر ،اس،فا ،ج ـــ کي) هغه چې نهٔ معلومېږي ۔هغه چې په پوهه يا علم کښې نهٔ راځي۔ هغه چې په نظر کښې نهٔ راځي۔

ـــ **موجودګي** :- (ـــ مو+ جو + د +ګي) (پ تر ،اس،مو) موجود نـهٔ ,, بودنه ،، غېر موجودګي۔

ـــ **موجوديت** :- (ـــ مو +جو+ دي + ي + ت) (و ـــ نهٔ موجودګي)۔

ـــ **نوے** :- (ـــ ن + وے) (پ تر ،اس،عدد) نوے او نهه ، يو کم سل۔

ـــ **نوييم** :- (ـــ ن + وے + ئ + م) (پ تر ، اس ، عدد) د اتهٔ نوے نه پس جخت راتلونکے نمبر ، وار يا درجه وغېره۔

ـــ **نه** :- په دوهٔ څيزونو کښې د دواړو څيزونو د نفي دپاره راځي ۔ لکه : نهٔ دا او هٔ هغه۔ نهٔ مې حج وشه او نهٔ غزا۔

ـــ **وجود** :- (ـــ و + جو + د) (عپ تر،اس ، مذ) وجود نهٔ لرنه ، عدم وجود ، د وجود نيشتيا ۔

ـــ **ورتګ** :- (ـــ و + ر + ت + ګ) (پ تر ،اس،مذ) نهٔ تلنه ، نهٔ ورتلنه۔

ـــ **ورکړه** :- (ـــ و+ر+ک+ړ) (پ تر ،اس،مو) نهٔ ورکونه ،عدم ادائيګي۔

ـــ **ويشت** :- (ـــ وي + ش + ت) (پ تر ،اس،عدد) شل او نهه ، يو کم ديرش۔

**نه** :- (نَ) (حرف) د جار تورے دے۔د څخه ، له وغېره معنې ورکوي۔

ـــ **نه** :- (ـــ نَ) (لاحقه) د فارسي لاحقه ده ۔داسې الفاظو نه وروستو

راوستے شي۔چې په اخره کښې د نون اواز لري۔اصلاً دا محض زوَرْ دے چې په دغه اخري نون ورکولے شي۔ لکه زنانه ، مردانه۔

ـــ **نه** :- (ـــنَ)(توري) دواړه د نفي توري دي۔ ښځي انکار یا قطعاً انکار په موقع وئیلے شي۔ بیا بیا انکار۔لکه نه نه راته مه کوه۔

ـــ **نه** :- (ـــــنَ)(لاحقه) د حاصل مصدر لاحقه ده۔ لکه : کتنه ، لیدنه۔

ـــ **نه** :- (ـــــنَ) (لاحقه) د سُر زیاتي لاحقه ده۔ځیني الفاظو خصوصاً په ټپو کښې د سُر او اهنګ یا خوند دپاره لګولے شي۔ لکه :

ما سره وار د ټپو کېده
ماله بې واره ټپې خوند نۀ راکوینه (ټپه)

ـــ **او یا** :- (ـــاو + و + یا)(پ تر،اس،عدد) نهه دپاسه اویا ، یو کم اتیا۔

ـــ **انکاربدونکې** :- (ـــا+ن+کا + رې + دو + ن + کې)(پ تر ، اس ، فا ، ج ـــ کې) هغه خبره یا کار چې ترې انکار ممکن نۀ وي ۔ لکه : دا یو نۀ انکاربدونکے حقیقت دے۔

ـــ **بایده** :- (ـــبا + ئې + دَ)(ف پ ، تر ، تف) نۀ ښائي ۔مه بادا ، هسې نه چې ، خدا ے دې نۀ کړي ، نۀ بیده۔ (د ,, نۀ باید ،، لږ بدل شکل دے)۔

ـــ **بدلېدونکے** :- (ـــب + د + لې + دو + ن + کے)(پ تر،اس ، فا ،ج ـــ کې) هغه چې بدلیدۀ ئې نۀ وي۔نا قابل تغیر۔

ـــ **بندېدونکے** :- (ـــب+ن+ دې + دو+ن+کے)(پ تر،اس،فا ،ج ـــ کې) هغه چې نۀ بندېږي۔

ـــ **بلوغ** :- (ـــبُ + لو + غ)(ع پ،تر،اس،مذ) نابالغي۔

ـــ **بېده** :- (ـــبې + دَ)(و ـــ نۀ بایده)۔

ـــ **بېلېدونکے** :- (ـــب + ي + لې + دو+ن+ کے)(پ تر،اس،فا،مذ،ج ـــ کې) هغه ځبله نۀ جدا کېږي۔نۀ جدا کېدونکے۔لاینفک۔

ـــ **پنځوس** :- (ـــپ + ن + (د) زو+ س)(پ تر ، اس ، عدد) پنځوس او نهه۔ یو کم شپېتۀ۔

ـــ **څۀ** :- (ـــ(ت) س)(پ تر ، صف) هغه چې ,, څۀ ،، نۀ وي۔هېڅ۔یا ډېره معمولي۔ (عموماً (ن + (ت) سَ) تلفظ کېږي۔لکه په نڅه خبره خفه کېدل

ـــ **ختمېدونکے** :- (ـــخ + ت + مې + دو+ن+ کې)(پ تر ، اس ، فا ، ج ـــ کې) هغه چې نۀ ختمېږي ، نۀ خلاصېدونکے۔تل جاري پاتې کېدونکے۔

ـــ **شلېدونکے** :- (ـــش + لې + دو + ن+کے)(پ تر ، اس ، فا ، ج ـــ کې) هغه چې نۀ شلېږي ، پوخ او مضبوط۔

ـــ **ښکاره کول** :- نۀ څرګندول ،نۀ برسېره کول ۔پټول پنهان کول ،نهام کول۔

ـــ **قبولي** :- (ـــق + بو + لي)(ع پ ، تر،اس ، مو) د نۀ قبلېدلو حالت ، عدم قبولیت۔

ـــ **کېدونکے** :- (ـــکے + دو + ن + کے)(پ تر،اس ،فا ،ج ـــ کې) هغه کار وغېره چې کېدونکے نۀ وي۔ناممکن، غېر ممکن۔ناشونے۔

ـــ **کفاف** :- (ـــک + فا + ف)(ع ف ، تر،اس،مذ) کافي نۀ ,, بودنه ،، د خرڅ وغېره نۀ پوره کېدنه، عدم کفایت۔

ـــ **کول** :- انکار کول ، نا کول۔

ـــ **کېدل** :- انکار کېدل ، په نفي کښې جواب ملاوېدل۔

ـــ **مداخلت** :- (ـــمُ + دا + خ + ل + ت)(ع پ ،تر،اس،مذ) عدم مداخلت ، دخل نۀ ورکونه۔

**نهار** :-(ن + ها + ر)(اس ، مذ) اوږے ، تشه ګېډه۔

ـــ **نهور** :- (ـــن + هو + ر)(پ تر ، صف ، مو ، ه ـــ ه) بالکل اوږے ، ښځي وږے ، بالکل په تشه ګېډه۔

ـــ **نهور ګرځېدل** :- بالکل اوږے ګرځېدل ، بالکل تشه ګېډه ګرځېدل۔

**نهار** :- (ن + ها + ر)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) نهر ، وږے ، اوږے ، چې څۀ ئې خوړلي نۀ وي۔تشه ګېډه۔

**نهاره** :- (ن + ها + ر)(د ,, نهار ،، بدل شکل دے۔چې ځینو مغیره ؤ تورو سره راځي۔

**نهاري** :- (ن + ها + ري)(پ تر ، صف) ,,نهار ،، سره تعلق لرونکے ، نهار ته منسوب۔لکه : نهاري ازده کړه۔

**نهارے** :- (ن + ها + رے)(اس،مذ ،ج ـــ ري) ناشته ، د سحر خوراک ، نارے۔ د اس خوراکه ، نارے۔

**نهارے** :- (ن + ها + رے)(پ تر،اس،مو ، ج) د ,, نهاره ،، جمع ده۔ د ,,نهاره ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي۔

**نهال** :- (ن + ها + ل)(ف تر،اس ، مذ ،ج۔ان) نوے لګولے شوے بوټې۔

د یار قدر له سروې ونې سره سم کا
سرو ونه په باغ کښې نونهال (خوشحال)

**نهالول** :- (ن + ها + ل + ؤ + ل)(مص) نوے بوټے لګول ، بوټے لګول ،نالول ، ابادول ،خوشحاله کول۔

**نهالي** :- تولاني،توشک ، چې په بستره کښې لاندې اچولے شي۔

**نهام** :- (ن + ها + م)(صف ،مذ ،مو ـــ ه) نهان ، پټ ، پوشیده ۔لکه نمر په غرونو کښې نهام شوے وو۔

**نهامے** :- (ن + ها + مے)(اس،مذ ،ج ـــ مي) د ګېډو بزو د یو مرض نوم دے چې غوښه ئې په کښې سره شي او د هلاکت باعث ئې وګرځي۔نهمے۔

**نهامېدل** :- (ن + ها + مې + د + ل)(مص) پټېدل ، نهان کېدل ، پوشیده کېدل پناه کېدل۔

**نهان** :-(ن+ ها + ن)(ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) پټ ، پناه ، پوشیده ، نهام ، ( د ,, نهال ،، نور الفاظ د ,, نهام ،، تر لاندې وګورئ)۔

ـــ **کېدل** :- پټېدل ، پناه کېدل ، پوشیده کېدل۔

ـــ **کېدل ، په زمکه** :- په زمکه کښې پټېدل ،مجازاً: مړ کېدل۔

همګي پېغمبران ، کــه اولیاؤ وو
دوي په مزکه شول نهال د مرګ دلاسه (خوشحال)

**نهایت** :- (ن + ها + ي + ت)(ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه) اخري حد ، اخري لوله ، اخري سر ، انتها ، ډېر زیات۔

ـــ **ډېر** :- (ـــډې + ر)(ع پ ،تر،صف ، مذ ، مو ـــ ه) بې شانه ډېر ، بې کچه ډېر ۔تر انتهائي حده پورې ډېر۔

**نهره** :- (ن + هـ + ر)(اس ، مو ، ج ـــ رې) د ,, نهر ،، تانیث دے۔

**نهري** :-(ن + هـ + ري) (ف،تر، صف) نهر سره تعلق لرونکے ، نهر ته منسوب ، هغه زمکې پټي چې د نهر په اوبو اوبېږي۔

ـــ **زمکه** :- (ـــز + م + کَ)(ف پ ،اس،مو، ج ـــ کې) هغه زمکه یا پټي کوم چې د نهر په اوبو خړوبېږي۔ (په مقابله کښې د چاهي یا باراني)۔

**نهرین** :-(ن + هـ + ري + ن)(ع ، اس) د ,, نهر ،، تثنیه ده ، دوه نهرونه ، دوه سیندونه۔

**نهرے** :-(ن + هـ + رے)(و ـــ نهارے)۔

**نهاد** :-(ن + ها + د)(ف ، صف ، مو، مو ـــ ه) سرشت ، طبیعت ، طینت ، خوي بوي ، طرز ، روش۔اکثر نورو الفاظو سره راځي۔لکه : نېک نهاد۔

**نهار** :- (ن + ها + ر)(ع ، اس ، مذ) ورځ ، روزْ ، روز۔

بې مقراضه غوڅوي د سړي عمر
هم دا لیل او هم نهار د دې دنیا (رحمان بابا)

**لیل و** ـــ :- (لي + ل (و) ـــ)(عف ، تر ، اس ظر) ورځ او شپه ، شواروز۔

**نهال کېدل** :- خوشحاله کېدل ، تازه کېدل۔

**نهالئ** :- (ن + ها + ل + ئ)(اس ،مو) برستن ، نالۍ ،توشک۔

**نهالېدل** :- (ن + ها + لې + د + ل)(مص) نهال کېدل ، د بوټي لګولے کېدل ـ خوشحاله کېدل ، ښېرازه کېدل ،

په مقام د ښېښور په څمکنو کښې
شمائل شــــو مطالب د زړۀ نهال (میا عمر رح)

**نهامي** :- (ن + ها + مي)(پ تر ، اس ، مو) پټېدنه ، پناه کېدنه.
**نهاني** :- (ن + ها + ني)(ف تر ، صف) پټ ، پوشیده.
**اندام ـــ** :- (ا + ن + دا + مِـــ)(ف تر ، اس ، مذ) پټ اندام ، د نارینـه ؤ د ښځې د متیازو اندامونه.
**نهائي** :- (ن + ها + ئي).
**نهایي** :- (ـــــ یي)(عف ،تر، صف) انتهائي ، اخري.
**ـــ درجه** :- (ـــ د + ر + جَ)(عف ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ جې)انتهائي درجه ، د اخري حد درجه.د ټولو نه / څخه اوچته یا د ټولو نه / څخه ښکته درجه.
**نهج** :- (ن + هـ'/ هـَ + ج)(ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونـه) لویـه روښـانه لار ـ طـور طریقه ، قاعده.
**نهضت** :- (نُ + هـ + ض + ت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) پاسېدل ، پاسېدنه ، روانېدنه ، کوچ (کونه).
**اقتصادي ـــ** :- (ا + ق + ت + صا + دي ـــ)(عف،تر،اس ، مذ) اقتصادي رفتار ، اقتصادي تګ.
**نهفتګي** :-(ن + هـ + ف + ت + ګي)(ف تر ، اس ، مو) پټېدنه ، پوشېدګي ، پټونه
**نضفته** :- (ن + هـ + ف + تَ)(ف ،اس،صف) پټ ، پوشیده ، پټ شوے ، پناه شوے ، پنهان.
**ـــ کول** :- پټول ، پوشیده کول ، پناه کول.
**ـــ کېدل** :- پټېدل ، پناه کېدل ، پوشیده کېدل.

تور وربل دې په سپین مخ را اشفته شۀ
سمــــن زار دې په سنبل کښې نهفته شۀ (خوشحال)

**نهم** :- (نَ +هـ + م)(پ تر ، اس ، عدد ، مذ ، مو ـــ ه) اتـــو پســــې جخـــت راتلونکے نمبر ، وار یا درجه.
**نهي** :- (نَ + هي)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ ګانې) منع ، منع کونه.د شرعې د حکم مطابق منع.
**ـــ کول** :- منع کول ، د شرعې مطابق د کوم کار یا څیز نه / څخه منع کول.
**نَهیب** :- (نَ + هي / هـے + ب)(ع،اس،مذ،ج ـــ ونه) شوکمار ،وټ کوونکے، اراجه کوونکے ـ لوټ ، شوکه.
**نِهیب** :-(ن + هي + ب)(ف ، اس ، مذ) ویره ، ډره ، خوف ، (اصلاً د ,, نهاب ،، اماله ده).
**ـــ ورکول** : ویرول ، ویره ورکول ، خوفزده کول.
**نهیل** :- (ن + هي + ل)(اس،صف،مذ ، مو ـــ ه) مایوس ، نا امېده.
**ـــ کول** :- مایوسه کول ، ناامېده کول.
**ـــ کېدل** :- ناامېده کېدل ، مایوسه کېدل.

که هوس کوې خوشحال هوس نهیل شه
غـــه هوس چې بې دستا له مخه کېږي (خوشحال)

**ـــ کښېناستل** :- ناامېده کښېناستل ، مایوسه کېدل.
**نهېل** :- (ن + هي + ل)(اس ، مذ) مرطوبه او ولاړه هوا.
**نهیلے** :- (ن+هي+لے)(پ تر ،صف، مذ) مایوس ، ناامېده ، نهیل.
**ـــ کېدل** :- مایوسه کېدل ، ناامېده کېدل.
**نهیه** :-(ن + هي + يَ)(عپ ، تر ، اس ، مو) نهي ، منع ، ممانعت.
**ـــ کول** :- نهي کول ، ممانعت کول ، منع کول.

**نهې** :- (ن + هې)(اس ،مع) د پیر نه وروستو راتلونکې ورځ.سه شنبه.
**نیا** :- (ن+یا)(اس،مو،ج ـ ګانې/ وې) د مور یا د پلار مور.

هغـــه ناوې چې پـــه خپله ښائسته نۀ وي
څوک بې څۀ کاندې ښائست د مور او نیا رحمان بابا

**نیا** :-(نَ + یا)(اس ، ظر) دننه ، درون.
**ـــ کول** :- دننه کول ، روداخلول.
**ـــ کېدل** :- دننه کېدل ، دننه تلل ، داخلېدل.
**نیابت** :- (ن + یا + ب + ت)(ع ، اس ، مذ) نائبي ، ماتحتي د نائب پـه حېث کار کونه ، لکه : د سلطنت نیابت.
**نیاز** :- (نِ + یـا +ز)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) احتیـاج ، حاجت ،عـاجزي ، معتقدانه عاجزي. ناز ، فخر.

راشه زما د یارۍ واوره
ما د نیاز په خندا ډېر وژلي دینه (ټپه)

د نارینه ؤ په نومونو کښې راځي.پېشکش ، تحفه ، هدیه.
**ـــ بین** :- (ـــــ بي + ن)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه اولاد چې پـه ډېر ناز او مینه لوے کړے شوے وي.هغه چې معمولي شان سختي نشي زغملے.نازک مزاجه.(اُر ـــ لاډله).
**ـــ بین توب** :- (ـــــ بي + ن + تو + ب)(پ تر،اس ، مذ) پـه مینـه او ارام لوئیدلو په وجه د طبیعت نازکوالے ، ناز ، ادا ، کبځ (اُر ـــ لاډ).
**ـــ بین لویول** :- په ډېر ناز او مینه لویول.په ډېر ارام او راحته لویول.
**ـــ بینه** :- (بي + نَ)(پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ نې) د ,, نیازبین ،، تانیث دے.
**ـــ حاصلول** :- ملاقات کول ، د ملاقات عزت حاصلول.
**ـــ من** :(ـــ م + ن).
**ـــ مند** :- (ـــ م + ن + د)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې نیاز کوي. عاجزي کوونکے عاجزۍ سره خبرې کوونکے یا خط لیکونکے. هغه چې مینه ورسره کولے شي.محبوب ،خادم ، عقیدتمند.حاجتمند ، محتاج.
**ـــ ورل** :- ناز ورل ، قدر کول.
**ناز و ـــ** :- (نا+ ز و ـــ)(ف ، تر ، اس ، مذ) یو بل سره د مینې محبت خبرې. د عاشق د طرفه عاجزانه انداز او د معشوقې د طرفه کبځ او ادا. د عاشق معشوقې په خپله د مینې خبرې.
**بې ـــ** :- (بې ـــ)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې حاجت نۀ لري.بې پروا.
**نیاز** :- (ن + یا + ز)(اس،مذ،ج ـــ ونه) د منښتې په طور پوخ کړے څیز، نذر.
**ـــ منل** :- د کوم مقصد حاصلولو دپاره څیز د پخولو منښته کول.نذر منل ، منښته کول.
**نیازول** :- (ن + یا + ز + ؤ + ل)(مص) د نیاز سلوک کول ، مینه محبت کول ، په فخر کول ، محترم کول ، عزت ورکول.
**نیازي** :- (ن + یا + زي)(اس ، مذ ، ج ـــ ان) نیاز کوونکے ، عرض کوونکے ، عـاجزۍ سـره ویونکے. مئین ، عاشق ، دوست ، محبوب ،د پښتنو یوه لویه قبیله.
**نیازي** :- (ددغه)(اس ، مع) د ناصرو څانګه ده.غلزي دي.
**نیازېدل** :- (ن + یا + زې + د +ل)(مص) فخر کول ، ویـاړ کول ، ویاړېدل، ناز کول مفتخر کېدل،احترام ورکړے کېدل.
**نیازېدنه** :- (ن + یا + زې + د + نَ)(حمص) فخر کونه ،ناز کونه.
**نیازېدۀ** :- (ن + یا + زې + د)(و ـــ نیازېدنه).
**نیازه** :- (ن + یا + زَ) د ,, نیاز ،، بدل شکل دے.عموماً نورو الفاظو سره راځي

-لکه: بې نیازه-

**ـــــ وړے** :- (ـــــ وُ + ړے) نیازولے،محبوب،محترم ،د عزت وړ-

**نیاست** :- (ن + یا + س + ت)(فعل) د ,, نۀ یاست ،، لنډیز شکل دے- نۀ یئ-

**نیاګانه** :- (ن + یـا + ګـا + نَ)(ف تر،صـف) د نیکونـو سـره تعلـق لـرونکے ، نیکونو ته منسوب-

**نیاګۍ** :- (ن + یا + ګ + ی)(اس،مو) د ,, نیا ،، تصغیر دے- د مینې په طور ,,نیا ،، ته وائي- د مور یا د پلار مور-

**نیال** :- (ن + یا + ل) د ,,نهال،، بدل شکل دے-

**نیالګر** :- (ن + یا + ل + ګ + ر)(پ تر،اس،مذ،ج ـــ ان) بوټي نهالوونکے-

**نیالګره** :- (ن + یا + ل + ګ + رَ)(اس،مو،ج ـــ رې) د ,, نیالګر ،، تانیث دے - د بوټو د لګونو ځاے ، نهالستان-

**نیالګے** :- (ن + یـا + ل + ګے)(اس،مـذ،ج ـــ ګـي) د ,, نیـال ،، تصغیر دے - وړوکے نیال ، وړوکے نهال ، وړوکے بوټے-

**نیالګے** :- (ن + یا + ل + ګے)(اس،مذ) نهال ، اصله-

**ـــ کښېنول** :- وړوکے شان بوټے لګول-

**نیالی** :- (ن + یا + ل + ی)(اس،مو) نهالی ، بړستن ،توشک ، تولاټې-

**نیام** :- (ن + یا + م)(ف،اس،مذ ، ج ـــ ونه) تېکے ، خاص کځوړه چې توره یا چاړۀ په کښې کښېښودے شي-

**نیام** :- (ن + یا + م) (ف ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د تورې وغېره تیکے-

**نیام** :- (ن + یا + م)(صف،مذ،مو ـــ ه) پټ ، پناه ، نهام ، نهان ، پوشیده-

**ـــ کېدل** :- پناه کېدل ، پنهان کېدل ، پټېدل-

**توره د ـــ نه / څخه راوښکل** :- توره د تیکي څخه باهر راوستل ، مجازاً جنګ ته تیارېدل-

**توره ـــ ته کول** :- توره په تیکي کښې ور اچول -مجازاً : د جنګ څخه لاس اخیستل-

**نیامده** :- (ن + یا + م + دَ)(حرف) ناڅاپه ، ګوري ټپه ، نابېره ، غوري ټپه-

**نیامه** :-(ن + یـا + مَ) د ,, نیـام ،، بـدل شـکل دے -د مغیـرهٔ ځینـو تـورو سره راځي-

**توره لـه ـــ وښکل** :- تـوره د تیکـي څخه بـاهر تـه راوښـکل مجازاً: جنګ تـه تیارېدل

**نیاؤ** :- (ن + یا + ؤ)(ف،اس،مذ) انصاف ، عدل سره فېصله-خصلت ، عادت-

**ـــ کول** :- انصاف کول ،انصاف سره فېصله کول ، د انصاف سلوک کول-

**ـــ کېدل** :- انصاف کېدل ، عدل سره فېصله کېدل -

**ـــ موندل** :-(و ـــ نیاؤ کېدل)-

**نیاوه** :- (ن + یا + وَ)(اس،مو،ج ـــ وې) تاوان ، ډنډ ، جرمانه-

**ـــ اخیستل** :-

**ـــ اغیشتل** :- تاوان اخیستل ، جرمانه وصولول-

**ـــ کېدل**:- تاوان راتلل ، ډنډ کښېښودلے کېدل،جرمانه لګېدل-

**ـــ ورکول** :- تاوان ورکول ، ډنډ ورکول ، جرمانه ورکول-

**نیاوے** :- (ن + یا + وے)(اس ،مذ،ج ـ وي) منصف،انصاف کوونکے، عادل-

**نیایه** :-(ن + یا + يَ)(اس،مذ،ج ـــ ونه)(و ـــ نیایي)-

**نیایي** :-(ن + یا + یي)(اس،مذ،ج ـ ګان) ماما ، د مور ورور-

**نیائے** :- (ن + یا + ئے)(و ـــ نیاؤ)-

**نبب** :- (نې + ب)(اس ، مذ) انداز ، طور،طریقه ، پرله پسې ، مسلسل-

**په یو ـــ** :- (پ ، یو ـــ)(پ تر،تف) په یو انداز ، په یوه روش ، مسلسـل ، پرله پسې-

**نببو** :- (بې + بو)(اس،مذ،ج ـــ ان) نیمبُو ، د نارنج د خاندان مشهوره مېوه-

چې د نارنج نه وړوکې وي-خوند ئې ترېو وي-لیمو-

**نیپال** :- (نې + پا + ل)(اس،مع) د بهارت قطب طرف ته د یو ملک نوم-

**نیپالے** :- (نې + پا + لے)(اس،مع) د نیپال د ملک اوسېدونکے - د نیپال ملک سره تعلق لرونکے - په نیپال کښې جوړ شوے-

**نیپالۍ** :-(نې + پا + ل + ی)(اس،مع،مو) د ,, نیپالے ،، تانیث دے-

**نیت** :- (ن + ي + ت)(ع،اس ،مذ،ج ـــ ونه) اراده ، قصد ، د زړۀ منشاء ، د زړۀ اراده-

ستا چې نیت د اشنایي نۀ وو صنمه

د رحمان ستـرګې دې ولې نۀ تړلې (رحمان بابا)

(د عربي تلفظ نیّت دے د ي شد سره)-

**ـــ کول** :- اراده کول ، قصد کول-

**ـــ بدلېدل** :- اراده بدلېدل ، وړومبنې اراده پرېښودل او نوې اراده کول - په زړۀ کښې د کومې بې ایمانۍ وغېره خرابه اراده پیدا کېدل-

**ـــ بدېدل** :- نیت خرابېدل ،نیت بدلېدل ، د بې ایمانۍ یا د زنا وغېره خراب خیالونه په زړۀ کښې پیدا کېدل-

**ـــ بدول** :- (و ـــ نیت خرابول)-

**په ـــ کښې فرق راتلل** :- (و ـــ نیت بدلېدل)-

**ـــ تړل** :- د نمونځ دپاره د نیت هغه خاص الفاظ ادا کول چې د نمونځ د شورو کولو نه / څخه اول وئیلے شي-

**ـــ خرابول** :- په نیت کښې فرق راوستل ، ښۀ نیت په بدو بدلول -د بدو اراده کول- د بدۍ نیت کول-

**ـــ درست لـرل** :- د خپـل زړۀ اراده صحیح لـرل -بـد خیـال پـه زړۀ کښـې نـۀ راوستل

**بد ـــ** :- (ب + د ـــ)(فپ تر،اس،مذ،ج ـــ ونه) خراب نیت ، خرابه اراده-

**نېک ـــ** :- (نې + ک ـــ)(فپ،تر،اس ،مذ ، ج ـــ ونه) ښۀ نیت ، ښه اراده-

**په ـــ کښې فرق راوستل** :-(و ـــ نیت خرابول)-

**ـــ پاتې کېدل** :-د بد نیت یاد پاتې کېدل ، د چا د بد نیت نقصان نۀ رسېدل -خو د بد نیتي یاد ئې پاتې کېدل- لکه : زۀ بـه کتـاب بیـا د سره کړم خو ستا به نیت پاتې شي-

**ـــ خرابېدل، څه ته** : د کوم څیز د قبضـه کولـو ، یـا پټـه ولـو اراده پـه زړۀ کښـې پیدا کېدل-

**ـــ خرابېدل ، چاته** :-چا ته د څۀ نقصـان رسـولو اراده پـه زړۀ کښـې پیـدا کېـدل - چا سره د بد کارۍ یا د زنا کارۍ اراده پیدا کېدل-

**ـــ لرل** :-اراده لرل ، قصد لرل-

**نیتي** :- (ن + ي + تي)(لاحقه) لاحقه ده-چې د نیت معنې شندي-

**بد نیتي** :- (ب + د ـــ)(فپ ،اس ، مو) بدنیت لرنه ، د چا په حقله خراب نیت لرنه ، حسد -

**نیته** :-(ن+ي + تَ)د ,, نیت ،، بدل شکل دے-عموماً نورو الفاظو سره راځي-

**بد ـــ** :- (ب + د ـــ)(پ تر ،صف) هغـه سړے چې نیت ئې درست نۀ وي، حسد کوونکے ، حاسد -

**نیتے** :- (ن + ي + تے)(لاحقه) لاحقه ده -نورو الفاظو سره راځي-او اسم جوړوي-

**بد ـــ** :- (ب + د ـــ)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ تي) هغـه سړے چې بـل تـه خرابـه اراده لري-بل سره حسد کوونکے ، حاسد -

**نیپتون** :- (ن + پ + تو + ن)-

**نیپټون** :- (ن + پ + ټ + یو + ن)(اس ، مع) د یوې مشـهورې سیارې نـوم ,, نیپچون ،، هم تلفظ کېږي-

**نېټه** :-(نې + ټَ)(اس ، مو ، ج ـــ ټې) معین وخت ، مقرر کړے وخت -مقرره

وخت ، د وعدې وخت ـ میعاد ـ

ـــــ **اورېدل** :- مقرره وخت تېرېدل ، میعاد ختمېدل ـ

ـــــ **پوره کېدل** :- میعاد پوره کېدل ، مقرره وخت پوره کېدل ـ

ـــــ **تړل** :- ( و ـــ نېټه کښېښودل ) ـ

ـــــ **کول** :- وخت ، ورځ وغېره د کوم کار دپاره مقررول ـ لکه : د اتوار ورځ مې درسره نېټه کړې ده ـ

ـــــ **کښېښودل** :-د کوم کار دپاره وخت یا ورځ وغېره مقررول ـ د وادهٔ ورځ مقررول ـ

**نېټې** :-( نې + ټې )( اس ، مو ، ج ) د ,, نېټه ،، جمع ده ـ د ,, نېټه ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي ـ

**بې ـــ** :- ( بې ـــ )( پ تر ، تف ) د مقرره وخت نه / څخه علاوه د مقرره وخت نه /څخه وړاندې یا وروستو ـ

ـــــ **کښېښودل** :- وخت مقررول ، د یو وخت په پوره کېدو بل وخت مقررول ـ انې بانې کول ، ټال مټول کول ـ

**نیچ** :- ( نې + چ )( هـ ،صف ، مذ ، مو ـــ چې ) کمینه ، کم اصل ، کمین ـ

ـــــ **ابستل** :- تاؤ ابستل ، مجازاً : زور کمول ، د زوره پرې ابستل ـ

ـــــ **ذات** :- ( ـــ ذا + ت )( هـ،ف ، اس ) د ادنی درجې ذات ، کم ذات ـ

**نیچ** :- ( ن + ي + چ )( صف ،مذ ) کلک او تاؤ شوے ـ

**نېچکے** :- ( نې + چ + کے )( پ تر ،اس ،مذ ،ج ـــ کي ) د ,, نیچ ،، تصغیر دے ـ کمینه ، رذیل ، د ادنی طبقې سړے ـ

**نېچه** :- ( نې + چَ )( فپ ، تر ، اس ، هـ ، ج ـــ چې ) د ,, نې چه ،، مرکب دے ـ وړوکے ,, نے ،، د نل وړوکې شان ټکړه ـ نچه د جولاګانو نچه ـ

**د تنفس ـــــ** :- ( د ، ت + ن + ف + س ـــ )( فپ ، تر ،اس ،مو ،ج ـــ چې ) هغه نالۍ چې ساه پرې اخستے شي ـ د ساه نالۍ ـ

**نېخځکۍ** :- ( نې + خ (ت) س + ک + ی )( پ تر ، صف ، مو ) د ,, نېخچکې ،، تانیث دے ـ

**نېخځکے** :- ( نې + خ + (ت) س + کے )( پ تر ، صف ، اس ، مذ ، ج ـــ کي ) لوړ قد واله ، بې ډوله سړے ـ

**نېخۍ** :- ( نې + (ت) س + ئ )( اس ،مو ) نخۍ ،نسۍ ،سوتلۍ ـ

**نېخۍ** :- نې + (ت) س+ی )( اس ،مو ) شړله درۍ ، قالین ،خرمک ،ټیکټاکه ـ

**نېخه** :-( نې + خَ )( جمله ) د ,, نهٔ یم خبر ،، لنډیز شکل دے ـ

**نیران** :- ( نې + را + ن ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) اور ، اتش ـ

**نېرکے** :- ( نې + ر +کے )( اس ،مذ ،ج ـ کي ) د یو بوټي نوم دے ـ

**نېرنګ** :- ( نې+ر+ن+ګ )( ف ، اس ) مکر ،دوکه ،فریب ،چالاکي ، جادو ، مدارتوب ، شعبده ـ

ـــــ **باز** :- ( ـــ با + ز )( ف تر ،اس ، مذ ،ج ـــ ان ) شعبده باز ، مداري ، جادوګر ،دوکه مار ، ټګجن ، دغاباز ـ

ـــــ **ساز** :- ( ـــ سا + ز )( و ـــ نیرنګ باز ) ـ

**نېرنګي** :- ( نې + ر + ن + ګي )( ف تر ، اس ، مو ) جادوګري ، شعبده بازي ، مداري توب ،عجیبه والے ، تماشه ـ

**نیرو** :- ( نې + رو )( ف ، اس ، مذ ) طاقت ، قوتا ، زور ـ

**نیره** :-( نې + ر )( اس ، مو ، ج ـ رې ) رینه،د چمیارانو یوه اله ده ـ چې ګنډ پرې کوي ـ چیلۍ ( بزه ) یا د بزې بچے چې په غوړونو او پوزه ئې زیرې کړښې وي ـ

**نیز** :-نې + ز )( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) سېلاب ـ

ـــــ **راتلل** :- سېلاب راتلل ـ

ـــــ **وړے** :- ( ـــ وُ + ړے )( پ تر ،اس ،مف ، ج ـــ ړي ) هغه چې د سېلاب اوبو ځان سره لاهو کړے وي ـ هغه څیز چې سېلاب ئې د ځان سره راوړي ـ ګنګخرې ـخس و خاشاک ـ

**نیز** :- ( نې+ز )( ف ،حرف ) علاوه له ... پرته له ـ تېرے په ـ

**نیز ه** :( نې + ز + د ) د ,, نزد ،، بدل شکل دے ـ

**نیزدې** :- ( نې + ز + دې )( حرف ،ظر ) قریب ، خوا کښې ، نزدې ، تقریباً ـ

ـــــ **کېدل** :- خواله ورتلل ، ورلنډېدل ـ قریب کېدل ـ

**نیزوبې** :- ( نې + زو + بې )( پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ بې ) د سېلاب اوبهٔ ـ اودس روا دے په هغه اوبهٔ که یو څیز ورسره وزي ــ لکه نیزوې ـــ ( خېر البیان )

**نیزه** :-( نې + زَ )( و ـــ نیز ) سېلاب ـ

ـــــ **وړے** :- نېز وړے ، هغه چې سېلاب په مخه اخستے وي ـ خس و خاشاک ، ګنګخرې ـ

**نېزه** :-( نې + زَ )( اس ، مو ، ج ـــ زې ) د جنګ مشهوره اله ، چې د بلې نه/څخه اوړده وي ـ

ـــــ **بازي** :- ( با + زي ) د نېزې د کار مړنے ، هغه سړے چې په جنګ کښې نېزې نه/څخه کار اخلي ـ د نیزې د کار کرتبونه ـ په اس سور ، په نېزه ،نښه وړنه ـ

ـــــ **وار** :- ( ـــ وا + ر )( فپ ، تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) د نیزې په شان ، د یوې نیزې په فاصله ـ

**په ـــ وهل** :- په نېزه زخمي کول ، د نېزې ګذار ( په چا ) کول ـ

ـــــ **نمر رانښکته کول** :- ډېر ظلم زور شورو کول ـ

**نیزه** :-( نې + زَ )( اس ،مو ،ج ـــ زې ) یو قسم کهے چې قلمونه ترې جوړېږي

**نیژده** :- ( نې + ژ + دَ )( اس ،مو ) د ګنډلو یو قسم دے ـ لماړے ، په لویو لویو ټکونو ګنډنه ـ

**نیژدې** :-( نې + ژ + دې ) ـ

**نېږدې** :-( نې + ګ ژ + دې )( و ـــ نیزدې ) ـ

**نیسان** :- ( نې + سا + ن )( ف ،اس ) د رومیانو یا د یهودیانو د تقویم ( کېلنډر ) اوومه میاشت ـ چې د اپریل د میاشتې سره لګي ـ وائي چې په دې میاشت چې کوم باران په سمندر باندې وشي نو ځینې ځاځکي په کښې په سمندر کښې په صدف کښې ځاے ونیسي او مرغلره شي ـ شاعرانو په دې معنې کښې ډېر استعمال کړے دے ـ

**ابرِ ـــ** :- ( ا + ب + ر ـــ )( ف ،تر ،اس ، مذ ) د نیسان د میاشتې وریځ ، ( چې د باران څخه ئې په سمندر کښې مرغلرې جوړېږي ـ

**نیساني** :- ( نې + سا + نې )( ف تر ،صف ) د نیسان میاشتې سره تعلق لرونکے ، د نیسان میاشتې ته منسوب ـ

**نېست** :-( نې + س + ت )( فعل ) د ,, نه ایست ،، لنډ شکل دے ـ نیشته ـ

ـــــ **کول** :- نشته کول ،نیش کول ، بېخي ورکول ، معدوم کول ـ

ـــــ **کېدل** :- ( و ـــ نیش کېدل ) ـ

ـــــ **وهست** :- ( ـــ (تو) هـ + س + ت )( ف تر ،اس ) نشته او شته ـ

**نېست** :-( نې + س + ت )( ف ، فعل ) نشته ، نیش ، عدم ـ

ـــــ **کول** :- نیش کول ، ورکول ، معدوم کول ـ

ـــــ **کېدل** :- نیش کېدل ، معدوم کېدل ، ورکېدل ـ

ـــــ **و هست کېدل** :- شته او نشته کېدل ـ مجازاً : نهٔ پاتې کېدل ،نیش کېدل ـ

**نېست** :-( نې + س + ت )( اس ، صورت ) یو اواز دے ـ چې د سویو د ښکار په وخت وېستے شي ـ

ـــــ **ګار** :- ( ـــ ګا + ر )( و ـــ نېست من ) ـ

ناصبور خــــاطر نه غمه نهٔ خلاصېږي

د نېستګار په سر سوارهٔ و قلنګ نشته (حمید)

**ـــــ ګاري**:- (ـــــ ګا + ري) (و ـــــ نېستمني).

**ـــــ وهست**:- چې وجود نهٔ لري او هم وجود لري. چې هم وي او هم نهٔ وي.

**ـــــ نابود کول**:- بېخي ورکول، معدوم کول، بنسټ وبنکل، جړه وبنکل.

**ـــــ نابود کېدل**:- بېخي نېش کېدل، بېخي ورکېدل، نوغې ورکېدل، معدوم کېدل.

**ـــــ من**:- (ـــــ م + ن).

**ـــــ مند**:- (ـــــ م + ن + د) (ف، تر، صف، مذ، مو ـــ ه) خوار، غریب، چې هېڅ ورڅخه نهٔ وي.

**ـــــ مني**:- (ـــ م + ني) (فپ، تر، اس، مو) نېستګاري، خواري، عاجزي، غریبي.

**نېستول**:- (ني + س + ت + ؤ + ل) (مص) (و ـــــ نېست کول).

**نېستي**:- (ني + س + تي) (ف تر، اس، مو) نېشتیا، خواري، غریبي، ناپید.

**نېستۍ**:- (ني+س+ت+ۍ) د ,, نېستي ،، جمع ده. د ,, نېستي ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**د ـــــ وهلے**:- (د ـــ و+هـ +لے) (فپ، تر، اس، مف، مذ، ج ـــ لي) هغه چې د نېستۍ غریبۍ د لاسه خراب شوے دے. د افلاس دلاسه په بده و رځ.

**نېستان**:- (ن + ي +س +تا + ن) (ف تر، اس، ظر، مذ، ج ـــ ونه) د نلونو سرغشو ځنګل.

**نېستېدل**:- (ني + س + تې + د + ل) (مص) (و ـــ نېست کېدل).

**نېټ**:- (ن + ټ) (انګ، اس، مذ، ج ـــ ونه) جال، خصوصاً هغه جالیزه پټه کومه چې د والي بال او ټېنس وغېره لوبو کښې پکارولے شي.

**نیسل**:- د نیول په معنٰی کښې یو متروک مصدر دے. چې ځینې فعلونه ترې اشتقاقېږي.

**نیسلم**:- (ني +س + ل + م) (فعل) د ,, نیسل ،، (جوړه) مصدر څخه د ماضي فعل.

**نیسه**:- (ني + سَ) (فعل) د ,, نیسل ،، (جوړۍ) مصدر څخه د امر فعل.

**نیسي**:- (ني + سي) (فعل) د ,, نیسل ،، (جوړۍ) مصدر څخه د حال (غائب) فعل.

**نیسۍ**:- (ني + س + ۍ) (فعل) د ,, نیسل ،، (جوړۍ) مصدر څخه د حال (حاضر) فعل. د همدغسې مصدر څخه د جمع امر فعل هم دے.

**نېش**:- (ني+ش) (ف، اس، مذ، ج ـــ ونه) لشه (د لړم، مچۍ) د تېرهٔ څیز څوکه. د ګیاه یا د بوټي تبغه. زهر.

**ـــــ دار**:- (ـــــ دا+ ر) (ف، تر، صف، مذ، ج ـــ ان، مو ـــ ه) لشه لرونکے، داسې خبره چې په کښې طنز یا پېغور وي.

**ـــــ ورکول**:- لاشهٔ ورښخول، چیچل. پېغور ورکول، زړهٔ خوږوونکے خبره کول، طنز کول.

**ـــــ وهل**:- د تخم د دانو زرغونېدل او تبغې کول، تبغه کول.

**نېشتر**:- (ني + ش + ت + ر) (و ـــ نشتر).

**نېشته**:- (ني + ش + تَ) نیش، نیست، نشته نه موذي هم ښهٔ دے کټ خو پرې ډک وي. (متل)

**نېشتے**:- (ني + ش + تے) (فعل) د نیشته یا نشته بدل شکل.

**نېشکو**:- (ني + ش + ک + ر) (ف تر، اس، جم) لفظي، د شکرو نل. مجازاً: ګنے

**نېشن**:- (ني + ش + ن) (انګ، اس، مذ، ج ـــ ونه) قوم، ملت، اولس.

**نېشه**:- ني + شَ) (اس، مو، ج ـــ شي) نشه، خمار، غرور، لوئي، کبر.

**ـــــ کېدل**:- نشه کېدل، په نشه نشي کېدل، مغروره کېدل، کبرجن کېدل.

**نېشي**:- (ني + شي) (فپ، تر صف) نېش سره تعلق لرونکے. نېش واله، نبغو واله، تبغي.

**نېشنلټي**:- (ني + ش + ن + لي + ټي) (انګ تر، اس، مو) قومیت، ملیت.

**نېشنلزم**:- (ني + ش + ن + ل + ز + م) (انګ، اس، مذ) قومیت، ملیت، ملت پالنه

**نېشنلسټ**:- (ني + ش+ن + ل+س + ټ) (انګ تر، اس، صف، مذ، ج ـــ ان) قوم پرستي، خپل قام اولس سره مینه لرونکے.

**نېشنلسټه**:- (ني + ش + ن + ل + س + ټ) (انګ، پ تر، اس مو، ج ـــ ټې) قوم پرسته

**نېښن**:- (ني + خ / ش) (اس، مذ، ج ـــ ان) اووهٔ کلنے اوښ.

**نېښتر**:- (ني + خ/ش+ ت + ر) (اس، مذ، ج ـــ ونه) نشتر، د زخم د شلولو تېرهٔ آله. د نشتر / نخترونه.

**نېښتولے**:- (ني + خ/ش + تو + لے) (اس، مذ) هغه وړه آله چې د شولو وغېره د پټي په مېنځ کښې جوړولے شي.

**نېښل**:- (ني+خ/ش+ل) (مص) د خر په ختو وغېره کښې ننښتل.

**نېښه**:- (ني + خَ/شَ) (اس، مو، ج ـــ ښې) د ,, نېښن ،، تانیث دے.

**نېښي**:- (ني + خي /شي) (اس، مذ) کوني کبر، چنګاښ، پیاز چې نوے راټوکېدلے وي.

**نېغ**:- (ني + غ) (صف، مذ، مو ـــ ه) راست، مستقیم، د ,, کوږ ،، ضد دے.

**ـــــ په نېغه**: (ـــ پ، ني + غَ).

**ـــــ په نېغو**:- (پ، ني+غو) (پ تر، تف) براه راست، په مستقیمه طریقه.

**ـــــ غر**:- (ـــــ غ + ر) (پ تر، اس، مذ، ج ـــ ونه) هغه غر چې ارخ ئې ډېر په زوېږ نهٔ وي د دیوال په شان نېغ وي. چې خاتهٔ پرې ګران وي.

**ـــــ کتل**:- په یو نېب کتل، په ډکو سترګو کتل.

**ـــــ مولے**:- (ـــــ مو + لے) (پ تر، اس، مذ، ج ـــ لي) د مولي په شان نېغ (ناست یا ولاړ) (مولے هغه اوږد کانړے چې زنانه پرې مصالې وغېره اوړهٔ کوي. داکانړے اکثر په چټو کښې نېغ پروت وي) (د هغه سړي په حقله وئیلے شي چې هېڅ خواري محنت نهٔ کوي. بې کاره سړے).

**ـــــ نېغ کتل**:- په یو نېب کتل. د غصې په نظر کتل.

**ـــــ والے**:- (ـــ و + الے) (پ تر، اس، مذ) راستي، سم والے. (د ,, کوږ والے ،، ضد).

**ـــــ ودرېدل**:- مستقیم ودرېدل، سم ودرېدل، لکېدل.

**نېغکے**:- (ني + غ + کے) (پ تر، اس، مذ، ج ـــ کي) د نېغ تصغیر دے. هغه هلک چې نېغ نېغ کېږي. ګستاخي او بد لحاظي سره خبرې کوونکے، زرجنګ ته تیارېدونکے. بد لحاظه، چالاک، مشروټے. د ښځې په پټ اندام کښې باهر ته راوتے څیز. هغه کس چې ځان اوچت اوچت کوي یا ځان ښائي.

**ـــــ کېدل**:- نېغ نېغ کېدل، مشروټے کېدل، بدلحاظه کېدل، ګستاخه کېدل.

**نېغکۍ**:- (ني + غ + ک + ۍ) (اس، مو) د ,, نېغکے ،، تانیث دے. (اوله او دریمه معنې ورکوي).

**نېغول**:- (ني+غ + ؤ + ل) (مص) راست کول، سمول، مستقیمول، نېغ ودرول، لکول. (کار ته) ور وړاندې کول.

**نېغه**:- (ني + غَ) (اس، مو، ج ـــ غي) د ,, نېغ ،، تانیث دے. په ترس چلېدونکې جینۍ، کبر کوونکې جینۍ.

**نېغي**:- (ني + غي) (اس، مذ) بد لحاظه.

**ـــــ نېغي خبري**:- (ـــ ني + غ + خ + ب + ري) د بدلحاظۍ خبرې.

**نېغے**:- (ني + غے) (اس، مذ، ج ـــ غي) (و ـــ نېغکے).

**نېغې**:- (ني + غې) (اس، مو، ج) د ,, نېغه ،، جمع ده. د ,, نېغه ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**نېغېدل**:- (ني + غې + د + ل) (مص) راست کېدل، سمېدل، مستقیمېدل کوږ والے وتل. بد لحاظۍ سره سختې خبرې کول، ګستاخي کول، جنګ ته تیارېدل.

**نېک** :- ( نې + ک ) ( ف،صف،مذ،مو ــ ه ) ښهٔ ،ښهٔ عمل کوونکے،پرهېزګاره .

**ــــ اختر** :- ( ــا + خ + ت + ر ) ( ف تر،صف،مذ، مو ـــ ه ) ښهٔ ستوري واله ، د ښهٔ بخت خاوند بختور ، خوش نصيبے .

**ــــ بين** :- ( ــــبي + ن ) ( ف تر،صف ،مذ ،مو ـــ ه ) ښهٔ کتونکے ، ښهٔ نظر لرونکے

**ــــ پال** :- ( ـــپا + ل ) ( و ــ نېک فال ) .

**ــــ چلن** :- ( ـــچ + ل + ن ) .

**ــــ چلند** :- ( ــــچ + ل + ن + د ه ) ( هف تر،صف ،مذ ،مو ـــ ه ) د ښهٔ چال چلن خاوند ،شريف ،د ښهٔ و اخلاقو خاوند .

**ــــ خوئي** :- ( ـــــخو + ئي ) ( فپ تر،صف ،مذ ،مو ) د ښهٔ خوئي خاوند يا مېرمن ، ښهٔ خوئي واله ، ښهٔ عادت لرونکے .

**ــــ عهد** :- ( ـــع + ه + د ) ( عف ،تر،صف ) ښهٔ عهد ، ښهٔ زمانه ، ښهٔ وخت ، لوظ پوره کوونکے ، په قول لوظ اعتباري .

**ــــ فال** :- ( ــــفا + ل ) ( ف تر،صف ، مذ ، مو ـ ه ) ښهٔ فال واله ، ښهٔ پال واله ، ښهٔ شګون واله .

**ــــ فرجام** :- ( ـــف + ر + جا + م ) ( ف تر،صف،مذ،مو ــــ ه ) د ښهٔ انجام خاوند ، ښهٔ انجام واله .

**ــــ کردار** :- ( ـــک + ر + دا + ر ) ( ف تر،صف،مذ،مو ـــ ه ) د ښهٔ کردار خاوند ، ښهٔ کردار لرونکے ،د ښهٔ و اخلاقو واله ، ښهٔ عمل واله .

**ــــ کرداري** :- ( ــــک + ر + دا + ري ) ( ف تر،اس،مو ) ښهٔ کردار ،ښهٔ عمل ، ښهٔ اخلاق لرنه .

**ــــ مرغ** :- ( ـــم + ر + غ ) ( فپ،تر، صف ،مذ ،مو ـــ ه ) خوش بخته ،خوش نصيبه .

**ــــ مرغه** :- ( ـــم + ر + غَ ) د ,,نېک مرغ ،، تانيث دے .

**ــــ مرغي** :- ( ـــم + ر + غي ) ( فپ،تر،اس،مو ) خوش بختي ،خوش نصيبي .

**ــــ محضر** :- ( ـــم+ ح + ض + ر ) ( عف،تر،صف،مذ،مو ــ ه ) هغه چې نور خلق په نېکه يادوي .نورو ته ښهٔ ويونکے .

**ــــ بخته** :- ( ـــب + خ + ت ) د نېک بخت تانيث دے . بل ته د مخاطبې په وخت د نوم په ځاے وئيلے شي . لکه : يه نېک بخته ! دا دې څهٔ وکړهٔ .

**ــــ بختے** :- ( ـــب+خ+تے ) ( پ تر،اس،مو،ج ) د ,, نېک بختـه ،، جمع ده . زنانه ته د مخاطبې په وخت د نوم په ځاے استعمالېږي . لکه : يه نېک بختې ! زما خبره واوره .

**ــــ ذات** :- ( ـــذا + ت ) ( ف تر،اس،مذ،ج ــ ه ) ښهٔ ذات واله ، ښهٔ اصل واله ، اصيل شريف .

**ــــ خصال** :- ( ـــخ + صا + ل ) ( ف تر، صف،مذ،مو ـــ ه ) د ښهٔ و خصلتونو څښتن .نېک عادتونو واله ،نېک عمله ، نېک خويه .

**ــــ سرشت** :- ( ـــس + ر + ش + ت ) ( ف تر،صف،مذ،مو ـــ ه ) د ښې ختې خاوند ، د ښهٔ طبيعت خاوند ، ښهٔ خوئي بوئي لرونکے .

**ــــ سيرت** :- ( ـــسي + ر+ ت ) ( عف ،تر،صف،مذ ، مو ـــ ه ) د ښهٔ و اخلاقو خاوند ، خوش اخلاقه ، چې تول ژوند / جون ئې نېک تېر شوے وي .

**ــــ عمل** :- ( ـــع + م + ل ) ( فپ،تر،صف ،مذ، مو ــ ه ) ښهٔ عمل کوونکے ، نېکو کاره .

**ــــ نام** :- ( نا + م ) ( فپ ،تر،صف ،مذ ،مو ــ ه ) د ښهٔ نوم خاوند ، ښه شهرت لرونکے .

**ــــ نامي** :- ( ـــــنا + مي ) ( ف تر ، اس ، مو ) ښهٔ نوم ، ښهٔ شهرت ، ښهٔ نوم ، مشهورېدنه .

**ــــ نامي ګټل** :- ښهٔ نوم ګټل ، ښهٔ شهرت موندل ، د ښهٔ و نوم خورېدل .

**ــــ نيتئ** :- ( ـــن + ي + ت + ئ ) د ,, نېک نيتئ ،، جمع ده . د ,, نېک نيتي ،، بدل شکل د مغيره ؤ تورو سره راځي .لکه د نېک نيتئ په اساس ...

**ــــ نيتے** :- ( ـــن + ي + تے ) ( فپ تر،صف ، مذ ،مو ) د ښهٔ نيت خاوند ، ښهٔ نيت لرونکے هغه چې نيت ئې د ښهٔ و وي .

**ــــ و بد** :- ( ــــ(کو) + ب + د ) ( ف تر،اس،ج ) ښهٔ او خراب ، هر ګجه ، ښهٔ او خراب سره ګډ وډ . د کوم څيز ټول اړخونه ، خوبي او عېبونه .

**نېک** :- ( نې + ک ) ( هـ ،اس،مذ ،ج ـــان ) د ,, نائک ،، بدل شکل دے .مالک ، ( عموماً نوکران او دهقانان وغېره خپل مالک ته وائي ) .

**نيکانه** :- ( ني + کا + نَ ) ( پ تر ،اس،مو ) د نيکهٔ د خاندان خلق ، د نيکهٔ د طرف خپلوان

**نېکر** :- ( نې + ک + ر ) ( انګ ،اس،مذ ، ج ـــونه ) جانګے ، لنډ پتلون چې تر زنګنونو پورې وي .

**نېکو** :- ( نې + کو ) ( ف صف ) ( و ــ نېک ) .

**ــــ خصال** :- ( و ــ نېک خصال ) .

**ــــ کار** :- ( ـــکا + ر ) ( ف تر،صف ،مذ ،مو ـــ ه ) ښهٔ عمل کوونکے ، نېک عمله .

**نېکو تين** :- ( نې + کو + ټي + ن ) ( انګ ، اس ، جمع ) يو قسم امېزه ده چې د انسان په بدن ډېر زهرناک اثر اچوي او عموماً د سرطان مرض ترې پېدا کېږي .په تمباکو کښې دا ماده ډېره زياته وي .

**نيکهٔ** :- ( ني + کهٔ ) ( اس ، مذ ، ج ـــونه / ګان ) د پلار پلار ،د مور پلار ، د خاندان مورث اعلىٰ ، ( طنزاً ) هغه هلک چې د خپل عمر نه/ څخه د زياتې هوښيارئ خبرې کوي . هر زوړ او مشر سړي ته احتراماً وايهٔ شي .

**ټر ــ** :- ( ټ + ر ــ ) ( پ تر ، اس ، مذ ) د غور نيکهٔ پلار يا نيکهٔ . د يو خاندان مورث اعلىٰ .

**نېکي** :- ( نې+کي ) ( ف،اس ،مو ) ښېګړه ، ښهٔ سلوک ، ښهٔ کونه .

**ــــ بدي** :- ( ـــب + دي ) ( ف تر،اس،مو ) ښېګړه او بدسلوکي ، ښهٔ عمل او بد عمل .

**ــــ کول** :- ښېګړه کول ، ښېګڼه کول .

**نېګېټو** :- ( ن + ګ + ټ + ؤ ) ( انګ ،اس،مذ ) د کيمرې هغه فلم چې په کښې اول منفي يا اړولے تصوير جوړېږي .منفي جواب .

**نينګړے** :- ( ني + ن + ګ + ړے ) ( پ تر ، صف ، ج ـــ ړي ) د نيمګړے بدل شکل دے .په نيمه کښې پاتې شوے ، نامکمله ، ناپوره .

**نينګے** :- ( ني + ن + ګے ) ( و ــ نينګړے ) .

**نيل** :- ( ني + ل ) ( اس ،مذ ) د نيلي رنګ ماده ، چې جامو لـه د وينځلو نه پس سپک شان رنګ پرې ورکوي . وسمه .( هـ ) د سخت ګذار شين رنګې شنان چې په بدن ښکاره شي .

**ــــ ګون** :- ( ـــګو + ن ) ( ف تر ، صف ، مذ ) نيل بخن ، نيلي شان رنګ .د مصر د ملک مشهور سيند .

**نيل** :- ( ن + ي + ل ) ( انګ ، اس ، مذ ، ج ـــونه ) د تي سر چې ماشوم ترې يئ روي .د ربړ هغه اله چې د بوتل په سر لګولے شي .او ماشوم ددې په ذريعه د بوتل څخه پئ روي .

**نيل** :- ( ني +ل ) ( اس ، مذ ) ميل ، هغه اس چې د مستئ نه/ څخه په دوه ؤ پښو ودرېږي .

**نېل** :- ( نې + ل ) ( صف ) نمجن ، مرطوب ، نمجنه هوا .

**نېل** :- ( نې + ل ) ( ع ، اس ، مذ ) حاصلونه ، تر لاسه کول ، عموماً ,,مرام،، سره يو ځاے راځي .

**ــــ مرام** :- ( ـــم + را + م ) ( عف،تر،اس ) مرام حاصلونه ، مقصد حاصلونه مقصود ته رسېدنه .

**نيلاب** :- ( ني + لا+ ب ) ( اس ، مع ) د اټک څخه په ښکته د اباسيند نوم .

**نیلاتوته** :- (نی +لا+ تو + تَ)(هـ ، اس ، مو ) یو قسم ماده ده چې د تانبې ، گوگړو او د اکسیجن څخه تیارولے شي.پـه داروگانو کښې استعمالیږي.

**نیلام** :-(نی +لا+ م)(اس ، مذ ، ج ــونه) د بولۍ په ذریعه څیزونه خرڅه ول.یعني څوک چې د ټولو نه /څخه زیات قیمت ووائي.مال هغه له ورکوي.لیلام.

**ــــ گر** :- (ــــ گ + ر)(هـ ، تر ، اس ، مذ ) هغه ځاے چېرته چې څیزونه د نیلام (د بولۍ) په ذریعه خرڅولے شي.

**نیلامول** :- (نی +لا+ م + ؤ + ل) (مص ) د نیلام په ذریعه خرڅول ، د بولۍ په ذریعـه مـال خرڅـول ، یعنـي څـوک چې د ټولـو څخـه زیاتـه بـولي ورکـړي (قیمت ووائي) خرڅون څیز هغه له ورکول.لیلامول. مجازاً کوم څیز په ډېره ارزانه بیعه خرڅول ، په اوبو لاهو کول ،

**نیلامي** :- (نـي +لا+ مـي)(اُر ، پ تـر)د نـیلام مـال ، د نـیلام پـه ذریعـه خرڅېدونکے څیز ، په ارزانه بیعه اخستلے شوے مال ، لیلامي ، (اس) نیلام کوونکے.

**نیلاؤ** :- (نی +لا+ ؤ)(و ـــ نیلاب).

**نیلته** :- (نـي + ل + تَ)(اس ، مـو ، ج ــــ تـې) د یـو بـوټي نـوم دے چـې پـه داروگانو کښې پکارولے شي.

**نیلتے** :- (نی + ل + تے) د "نیلته" ، جمع ده . د نیلته بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**نیل طوطیا** :- (نی + ل + طو + ط + ل)(و ـــ نیلاتوته).

**نیـل گـاؤ** :- (نـي + ل + گـا + ؤ)(ف ، تـر ، اس ، مـو) یـو قسـم هوسـے دے چې رنـگ ئـې نیلي شـان وي .(دا د اوسـو / هوسـو یـو قسـم دے .د غـواؤ نـه دےخلقو به ئې ښکار کاوۀ).

**نیلم** :- (نی + ل + م)(اس ، مذ) د نیلي رنګ یو قیمتي کاڼے چې په گوتو یا کالو کښې استعمالیږي. د زنانهؤ په نومونو کښې راځي.

**نیلوفر** :- (نـي + لـو + ف + ر)(اس ، مذ ) مشهور گل چې په اوبـو کښـې پیـدا کیږي.نیلي رنګ لري. (هــ کنول)د زنانهؤ په نومونو کښې راځي.

**نیلون** :- (نی + لـو + ن)(اس ، مذ) یو قسم نوے مهینه او نرۍ کپړه ، چې د همدغې نوم تارونو څخه جوړولے شي.چې د سکرو ، هوا او اوبـو څخه سازیږي.نائلون.

**نیله** :- (نی+لَ)(اس ،مذ) یو قسم مار دے.(خج په "لَ" ، دے).

تبنتي سُوري ته د زلفو له منگوره

که نیله، که منگرے له پشلے دے (علي خان)

**ــــ مار** :- (ـــــ ما + ر)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د مارانو یو قسم دے .یو قسم منگور.

**نیله** :- (نی + لَ) (اس ، مو ، ج ــــ لې) د لرگي وغیره نرے تیرۀ ډکے چې پـه بـدن کښې ننه ووزي. لکـه : پـه پښـه کښـې مـې نیلـه لاړه .مجـازاً : زوے. ډکے لکه : زما خو دغه یوه نیله ده.

**ــــ ایستل ، اباسل ، وښکل** :- په بدن کښې ننه وتے نرے ډکے د ستنې په ذریعـه راوښکل.

**نیلـه گـر** :- (نـي + ل + گ + ر)(پ تـر ، اس ، مـذ ، ج ـــ ان /مـو ـ ه ) رنګریـز ، جامې وغیره رنګ کوونکے.

**نیلئ** :-(نی + ل + ئ)(اس ، مو)د "نیلے" ، تانیث دے.

**نیلے** :-(نی + لے)(اس ، مذ ، ج ـــ لي) سپین اس ، بوس اس ، د ځینو اسونو نوم هم نیلے ایښودے شي.ځیني خلق سپین خر ته هم نیلے وائي.

**د خیال /فکر ـــ زغلول** :- مجازاً پـه کومـه خبـره کښـې ډېر فکر کـول ، یـا تـر لـرې لرې پورې فکر کول.

**نیلېدل** :- (نی + لې + د + ل)(مص) د اس پـه دوه ؤ پښـو ودرېدل ، د اس پـه دوه ؤ پښو کېدل.

**نین** :- (ن + ي + ن)(اس ، مذ) د غوښې څخه کم مقدار ،لږه شان غوښه .

**نینځکه** :- (نی + ن + (د) ز + کَ)(اس،مو،ج ــــ کې) نینزکـه ، گـوډۍ ، د لوبـو گوډاگۍ ، نانځکه.

**نینک** :- (نی + ن + ک)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د سترگې تور.

**نینگانے** :- (نی +ن + گا + نے)(اس،مذ،ج ـــ ني) گړبوزے ، د کتې گوتې او د مسواکې گوتې تر مېنځ فاصله.

**نینگل** :- (نی +ن+گ+ل)(مص) طمع کول ، توقع لرل ، امید لرل.

**نینو** :-(نی + نو) د "نینے" ، (جمع) بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.لکه : عاشقي په نینو نۀ کیږي.

**نینوک** :-(نی + نو + ک)(اس،ظر) دننے ، اندروني.

**نینول** :- (نی + ن + ؤ + ل)(مص)(و ـــ ننول).

**نینېدل** :- (نی + نې + د + ل)(مص)(و ـــ ننېدل).

**نینونے** :- (نی + نو + نے)(اس ،مذ ، ج ـــ ني) سُورو والـه لوښـے چې وریـژې پـه کښې صفا کوي او چنوي.ساپې ، چنوونکے ، (ف : چلو صاف).

**نینوے** :- (نی + ن + وے)(اس،مذ،ج ـــ وي) د قلبي موتې ،د سپار لاستے.

**نینه** :- (نی + نَ)(اس ، مو ، ج ـــ نې) په بټ کښې ورته کړې د جوارو (یا د غنمو) دانه.

**نینې چینې** :- (نې + نې + چې + نې)(پ تر،صف) د مطلب دپاره نزدې نزدې لیدونکے .خواؤ شا گرځېدونکے ، خوشامدگرے.

**ــــ کېدل** :- د مطلب دپاره د چاخواؤ شا کېدل ، خوشامندي کول.

**نینے** :-(نی + نے)(اس ، ج) د "نینه" ، جمع ده . د "نینـه" ، بـدل شـکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ــــ چیچل** :- د پټ ورتې دانې خوړل.

**ــــ کول** :- په بټ کښې د جوارو دانې ورتول.

**ــــ کېدل** :- ه بټ کښـې د جـوارو د دانـو ورتېـدل .مجـازاً : تـاؤ خـوړل ، غصـه کېدل خو وس نۀ رسېدل ، نینې نینې کېدل.

**ــــ کول** :-

**ــــ ورتول** :- د جوارو (یا د غنمو) دانې په بټ کښې ورتول.

**د اوسپنې ـــ چیچل** :-ډېر سخت او گران کار کول.

**نینے** :- (نی +نے)(اس،ج) غنې دانې ، د چیچک دانې.

**نیو** :- (ن + یو)(اس،مو) نیا ، د مور مور ، یا د پلار مور.

**نیو** :- (نَ + یُو)(فعل) د "نۀ یُو" ، لنډیز شکل دے.

**نیو** :- (نی + و) نیونه ، په قابو کښې کونه ، راحیصارونه.

**ــــ کېدل** :- نیولے کېدل ، ماخوذ کېدل.

چې صبا د هغه کار په حساب نیو شي

صاف کړه نن له ځان سره هغه حساب (حمید)

**نیوز** :- (ن + یو + ز)(اس،مذ،ج ـــ ونه) نیز ، سیلاب.

**نیوز** :- (ن + یُو + ز)(انگ ، اس ، مذ ، ج) خبر ، خبرونه.

**ــــ ایـډیټر** :- (ـــ ا + ډي + ټ + ر)(انگ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د اخبـار پـه عمله کښې دخبرونو په حقله د کارونو مشر.د خبرونو مدیر.

**ــــ ایجنټ** :- (ــــ ا ے + ج + ن + ټ)(انگ تر ،اس،ج ـــ ان) د خبرونو ایجنټ ، د اخبارونو څرڅوونکے ، اخبار فـروش.خبرونـه اخبـار تـه رسوونکے ، خبررسان.

**ــــ ایجنسي** :- (ــــ اي + ج + ن + سي)(انگ تر،اس،مو) د اخبـارونو د خرڅولو واله دکان یا اداره. اخبارونو ته خبرونه رسوونکې اداره.

**ــــ پرنټ** :- (ـــ پ+ر+ن+ټ)(انگ ،تر،اس،مذ) اخباري کاغذ.

**ـــــ پېپر** :- (ـــ پې + پ + ر)(انګ تر،اس ، مذ) اخبار ، خبر پاڼه ، ورځپاڼه.

**ـــــ لېټر** :- (ـــ لې + ټ + ر)(انګ ، تر ، اس ، مذ) خبرنامه.

**نیوزمان** :- (ن + یو + ز + ما + ن)(و ـــ نیازبین).

**نیـوش** :-(ن + یـو + ش)(ف ، اس ، مـذ) اورېدنـه ، غـږ باسـنه،اورېدونکے ، غوږ ایښودونکے ، لکه : حقیقت نیوش.

**نیوشـنده** :- (ن + یـو + ش + ن + دَ)(ف تـر ، اس ، مـذ ، ج ـــ ګـان) اورېـدونکے ، غوږ ایښودونکے.

**نیول** :-(ني + ؤ+ل)(مص) په لاس کښې اخیستل. ګرفتـارول مقـررول ، پـه کـار لګول. قیاس (بازاري) غینې نیول.

**ـــــ په تېره (یه پا تېرې)** :- ګڼل ، شمارل،تېرېدونے ګڼل یا شمارل.

**پال ـــــ** :- شګون نیول ، ښۀ یا بد شګون ګرځول.

**پښه ـــــ** :- (پ + شَ ـــ) په تلو تلو کښې ودرېدل.

**تبې ـــــ** :- (ت + بې ـــ) تبه کېدل،په تبه ګرفتارېدل. بخار کېدل.

**تـر لاسـه ـــــ** :- (ت + ر + لا+ سَ ـــ) د لاس نـه /څخـه نیـول ،د چـا لاس نیـول چېرته بوتللو د پراه د چالاس نیول.

**تر نظارت لاندې ـــــ** :- نګراني کول.

**تماچه ـــ چاته** :- (و ـــ ټوپک نېول چاته).

**تنـدر ـــ نمـر / سـپوږمۍ** :- د نمـر یـا د سـپوږمۍ ګـرهن کېـدل . د سـپوږمۍ خُسوف او د نمر کسُوف.

**ټوپک ـــ چاته** :-د ویشتلو په انداز چاته ټوپک ورسمول.

**خبره ـــــ** :- په خبره اعتراض کول.

**خولۀ ـــــ** :- خولۀ بندول ، د خبرو نه /څخه منع کول.

**ځان ـــــ** :- خپل ځان په قابو کښې راوستل. خپل ځان ژغورل.

**ځاے ـــــ** :- قبلېدل ، منظورېدل ، لکه : خبرې ئې ځاے ونیو.

**ځاے ـــ دچا** :- د چا په ځاے کار شورو (شروع) کول جانشین کېدل ، د چا.

**را ـــــ** :-(را ـــ) را اخیستل ، په بیعه اخیستل ، په منډه کښې رالاندې کول. په قابو کښې کول ، قبضه کول.

**روژه /روجه ـــــ** :- (رو + ج / ژ ـــ) روژه / روجه کول ، د روژې / روجې په نیت خوراک څښکاک بندول.

**کار ـــــ** :-مزدوري شروع کول.

**لار ـــــ** :- چا ته په لاره کښې کښېناستل. لار بندول.

**لاس ـــــ** :- (لا+ س ـــ) منع کول.

**لمن ـــ دچا** :د چا د سرپرستۍ لاندې راتلل. سوال کول ، خواست کول ، زاري کول.

**له / د سره ـــــ** :- داسې خبره کول چې بل دا خیال وکړي چې دۀ تـه اصل حال معلوم دے او هغه په دې مغالطه کښې پټ راز ښکاره کړي.

**مېوه ـــــ** :- (مې + و ـــ) د ونې مېوه کول ، بار کول.

**ـــــ ورکول** :- ځان ګرفتارۍ له ورکول.

**نیولتیا** :- (ني + و + ل + ت + یا)(پ تر ، اس ، مو) نیونه ، نیول.

**نیولتیا** :-(ني+و +ل + ت + یا)(پ تر ، اس ، و) نیولے کېدنه ، انقباض ، ګرفتګي.

**نیولے** :-(ني + و + لے)(پ تر،اس ، مف ، ج ـــ لي) ګرفتـار شـوے ، قبضـه شوے.

**ـــــ کېدل** :- ګرفتاره کېدل ، د پولیس وغېره په قابو کښې راتلل.

**ـــــ کېدل ، چا سره** :- چا سره د بدکارۍ په حالت کښې نیـولے کېـدل. د زنا پـه حالت کښې لیدلے کېدل.

**نیولے** :- (ن + یو + لے)(اس ، مذ ، ج ـــ لي)(و ـــ نولے).

**نیون** :- (نې + و + ن)(انګ ، اس ، مذ) یو قسم ګېس دے چې د بجلۍ پـه کرنټ (رو) رڼا ورکوي.

**نیونک** :- (ني + ؤ + ن + ک)(پ تر، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د نیولو اله ، نُوسے.

**نیوونے** :- (ني + وو + نے)(پ تر ، اس ، مـذ ، ج ـــ ني) د نیولـو الـه ، نوسے ، نیونګ.

**نیوه** :- (ني + وَ)(حمص) نیونه ، قبضه کونه ، په قابو کښې کونه.

**نیوه** :- (ني + و)(پ اس ، مو ، ج ـــ وې) نیونه ، د نیولو فعل، د سپار لاستے ، موټے.

**لاس ـــــ** :- مجازاً : مرید جوړېدنه ، پېر ګرځونه.

**لاس ـــــ کول** :- مرید جوړېدل ، مرشد یا پیر ګرځول.

**نېوي** :- (نې + وي)(انګ ، اس ، مو ، ج ـــ ګانې) د جنګي جهـازونو یـو ټولے ، بحریه ،سمندري فوځ ، بحري فوځ.

**په ـــــ کښې دے** :- (جمله) په سمندري یا بحري فوځ کښې ملازم دے.

**نیوېل** :- (ني+وې+ل)(اس ، مذ) د انګورو وېخ له خاوره ورکونه.

**نیهام** :- (ني + ها + م)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) پناه ، پنهم ، پټ ، نهام.

**نیهامول** :- (ني + ها + مَ+ و + ل)(مص) پټول ، د نظر نه /څخه پناه کول.

**نیهامېدل** :- (نـي + هـا + مـې + د + ل)(مـص) نهامېـدل ، د نظـر نـه /څخـه پنـاه کېدل پټېدل ، پنهان کېدل.

**نیه** :-(نې + يَ)(اس ، مذ) ماما ، د مور ورور.

**نے** :- (نے)(ف اس ، مو،ج ـ ګانې / ان) شپېلۍ ، بانسرۍ.

**ـــ شکر** :- (ـــ ش + ک + ر)(ف تر، اس ، مذ) د شکر نل. مجازاً ګنے.

**ـــــ نـواز** :- (ـــ ن + وا + ز)(ف تـر ، اس ، مـذ ، ج ـــ ان) شـپېلۍ غـږوونکے . بانسري غږوونکے.

**ـــــ وهل** :- شپېلۍ غږول ، بانسري غږول.

**نے** :- (نے)(مخفف) د ,, نهٔے ،، لنډیز شکل دے.

**ـــ پېچ** :- (ـــ پې + چ)(ف تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) پېچوان ، حقـه چې نچې سره د ربړ اوږده نلۍ لګېدلې وي.

**ـــ نے** :- (ـــ نے)(لاحقه) لاحقه ده. ځینو الفاظو نه /څخه وړاندې لګولے شي. او د وخت معنې ورکوي. لکه : پرونے ، میاشتیتے.

**نېپل** :- (ن + ئې + ل)(اس ، مذ) نمجنه هوا ، ګرمـه او مرطوبـه هـوا . ګرمـه او لـه دوړو ډکه هوا.

**ـــــ جن** :- (ـــ ج + ن)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) نم لرونکې ، نمجـن ، ګرم او نمجن ، ګرمه او له ډوړه ډکه هوا.

◈◈◈

# و

**و**:- (واو) (اس، مذ / مو، ج ــــ ونه / ګاني) د پښتو د الفبا (حروف تهجي) اووه دېرشم توری دی. د اردو دري درېشم، د فارسي دېرشم، د عربي شپږ ويشتم توری دی. د ابجدو په حساب ددې قيمت شپږ (۶) دی. کوم خلق چې ,, ڼ ،، هم يو توری ګڼي. د هغوي په نزد دا اتۀ دېرشم توری جوړېږي. خو زمونږ په نزد ,,ڼ ،، يو توری نۀ دی. بلکې دا د ,,ړ ،، او د نون غنه شريک غږ دی. دا شريک غږ هم د الفاظو په سر کښې نۀ راځي. په مېنځ او آخر کښې راځي. ځکه عام طور سره دا د نون غنه او ړې په شکل کښې ,,نړ ،، ليکلے شي. هم دغه شان يو بل برغد توری ,,نګ ،، دی. چې د نون غُنه او د ګ ګه اواز دی. خو دا برغد توری د الفاظو په سر کښې هم راځي. او ځنې خلق ئې د ښکاره نون په آواز ئې هم وائي. ځکه د نون په رديف کښې ورله ځای ورکړے شۀ) دا توری ځينې وخت ب سره بدلېږي لکه: واز او باز. ددې واو څلور قسمونه دي. معروفه، مجهوله، موقوفه او معدوله ددې تشريح د ,,واو ،، د لفظ تر لاندې ورکړے شوې ده.

**و**:- (وَ) (حرف) د جار د توري ,, ته ،، سره راوستے شي. لکه: د هغۀ ته! هغه وته، په عامو خبرو اترو کښې ئې استعمال نشته. صرف په شعرونو کښې راځي.

**وُ**:- (وُ) (فعل) د ,, وو ،، لنډيز شکل دے. په ځينو کتابونو کښې د ,, وو ،، په ځای ليدے شي.

**و**:- (ــ و ــ) (حرف) د عطف توری دی. په پښتو کښې د فارسي عربي په عطفي مرکباتو کښې استعمالېږي. لکه خورد و نوش. و ليکن او اواز ئې هم د فارسي په شان وي.

**وَ**!:-(وَ) (حرف) د ندا توری دی. يه. اے لکه: و هلکه! دلته راشه.

**وُ**:- (وُ) (حرف) د ,, هو ،، لنډيز شکل دے. لکه د ,,وو ،، لنډيز شکل دے. چې د ,,هو ،، بدل شکل دے.

**وُ**:- (وُ) (سابقه) د فعلونو سابقه ده. چې د ځينو فعلونو په جوړښت کښې پکارولے شي. لکه: وګوره، وکاتۀ، وبه ګوري. ځنې وخت د فعل د ضمير نه/ څخه اول راوستے شي. لکه وئې کاتۀ. چې په اصل کښې,, هغۀ وکاتۀ ،، وو.

**ـــ و ــ**:-(ــ وو ــ) (حرف) د ربط توری دے. چې د ,, او ،، معنې لري. د فارسي د ,,و ،، هم معني دے. دا حرف عموماً د ماقبل الذکر توري سره تړلے شي. لکه بندوبست (ب+ن+دو+ ب+س+ ت) تګ و دو (ت + ګو+ دو) خو که چېرې د ماقبل لفظ آخري توری الف وي. نو بيا دا به خپل اواز کښې وايۀ شي. لکه خواؤ شاه (خ+ وا + وو + شا) اکثر استعمال سره ځنې وخت د ,,وو ،، په ځای ,,وُو ،، هم وايه شي)

**وَ**:- (وَ) (توری) د عربي په شان د قسم توری دے. خو په پښتو کښې صرف د عربي په الفاظو سره راځي. لکه: والله.

**وَ**:-(وَ) (حرف) د ندا توری دے. منادي سره راځي لکه: و سړيه.

**و**:- (وو) (لاحقه) د ځنو الفاظو د جمعې جوړولو دپاره ددغو الفاظو نه /څخه وروستو لګولے شي. لکه: کور و. د ځنو جمع الفاظو په آخر کښې د مغيره ؤ تورو د اثر تر لاندې ورزياتولے شي. لکه: د سړو کار، د هغو وېنا. د تاسو کلے.

**و**:-(وْ) (لاحقه) د ځنو کلماتو څخه د صفت اسم جوړولو دپاره پکارولے شي. لکه: برېتو، خېټو. (په دې صورت کښې دا توری ما قبل الذکر سره تړلے شي او دغسې توري له پېښن ورکولے شي. او ددې ,,و ،، څخه معروفه ,, واو ،، جوړه شي)

**وا**:-(وا) (حرف) د ندا توری دے. د منادي اسم سره راځي.

**وا**:-(وا) (حرف) د حېرت توری دے. اصلاً د ,, واه ،، مخفف دے.

**وا**:-(وا) (ف، حرف) وروستو، شاته، د فارسي نورو الفاظو سره راځي. لکه وامانده.

**وا**:-(وا) (توری) د تعجب او حېرت توری دے. وئ. لکه: وا! دا دې څۀ وو ے؟ په فارسي او عربي کښې نورو الفاظو سره راځي. لکه: وا حسرتا، واويلا.

**وا**:-(وا)

**واه**:-(وا + ه) (حرف) د انبساط توری دے، عموماً په تکرار سره وئيلے شي.

**ــ وا**:- (وا + وا)

**ـــ واه**:- (وا + (ه) + وا + (ه) (حرف) د انبساط او د خوشحالي توري دي. د خوشحالي يا د تعريف په موقع وئيلے شي. ځنې وخت په اړولے معنا کښې د زجر او غندې دپاره هم وايۀ شي.

**ــ کول**:- تعريف کول، شابسے ورکول، خوشحالي څرګندول.

**ــ کېدل**:- تعريف کېدل، شابسے ورکړے کېدل

**وا**:-(وا) (فعل) د ,,وايه ،، يا ,,وائې ،، لنډيز شکل دے. لکه: ته وا ښه! تۀ به وا

---

**وا**:-(وا) (ف، صف) پرانستے، وېړ، لرې

**ــ کول**:- پرانستل، وېړول، لرې کول، خلاصول.

**ــ کېدل**:- لرې کېدل، پرانستلے کېدل، خلاصېدل.

**نيم ــــ**:- (ني + م ــــ) (ف تر، صف) نيم پرانستے، نيم کښنو.

**وا ــــ**:- (وا ــــ) (لاحقه) اصلا د ,, و ،، لاحقه ده چې د فعلونو د جوړولو دپاره راځي. دا هغو مصدرونو سره راځي چې په اول سره کښې ئې الف وي. والوت چې په اصل کښې و ـ الوت په استعمال کښې الف واؤ سره وتړلے شي او ,,وا ،، تړې جوړ شي. وانۀ خلي د ,,اخيستل ،، مصدر سره تعلق لري.

**وابستګان**:- (وا + ب + س + ت +ګا+ن) (ف، اس، ج) د ,, وابســــته ،، جمع ده. وروستو تړلي شوي. مجازاً: متعلق خلق. خپل خپلوان وغېره

**وابستګي**:- (وا + ب + س + ت + ګي) (ف تر، اس، مو) تړون، سره تعلق، واسطه

**وابسته**:- (وا + ب + س + تَ) (ف تر، صف، اس، ج ــ ګان) سره تړلے، سره

تعلق لرونکے ، یو بل سره تړلے ، متعلق.

**وابسته** :- (وا + ب + س + تَ)(ف تر ، صف) وروستو تړلے شوے ، تړلے شوے. تړون لرونکے.

**واپس** :- (وا + پ + س)(ف ، اس ، ط) بېرته ، پستنه.

**ــــ اخيستل / ــــ اغيستل** :- بېرته اخيستل ، ورکړے څيز بيا وصولول.

**ــــ تلل ، په خپلو الفاظو** :- د خپلو الفاظو يا قول لوظ نه/څخه منکرېدل.

**ــــ غوښتل** :- ورکړے څيز پستنه غوښتل.

**ــــ کول** :- بېرته ورکول ،پستنه ورکول. بېرته ګرځول ، ستنول.

**ــــ کېدل** :- بېرته ګرځېدل ، ستون کېدل ، ستنېدل.

**ــــ ګرځېدل** :- (و ــــ واپس کېدل).

**واپسي** :- (وا + پ + سي)(ف تر ، اس ، مو) بېرته ستنيدنه ، بېرته راتلنه.

**واپسۍ** :- (وا + پ + س + ۍ) د ,,واپسي ،، جمع ده - د ,,واپسي ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ــــ ټيکټ** :- (ــــ ټي + ک + ټ).

**ــــ ټيکس** :- (ــ ټي + ک + س)(انګ پ تر ، اس ، مذ ، ج ــ ونه) د رېل ګاډي يا د جهاز وغيره د سفر هغه ټيکټ چې د تللو او راتللو دواړو غاړو دپاره استعمالېدے شي.د داسې ټيکټ په کرايه کښې رعايت کولے شي.

**په ــــ کښې** :-(پ ــــ کې)د بېرته راتللو په وخت يا دورا کښې.

**واپور** :- (وا + پو + ر)(انګ فر ، اس ، مذ) وَلے پر ، بُړان.

**وات** :- (وا + ت)(اس ، مذ ، ج ــ ونه) عېب ، نقص.

**واتر مارک** :- (وا + ت + ر + ما+ ر+ک).

**واټرمارک**:- (وا + ټ + ر ــ)(انګ ، تر ، اس مذ ، ج ــ ونه) د اوبو نښان ، په سېلاب کښې د اوبو د ختو اخري نخښه.په نوټ ياد کاغذ په ساخت ليکلے شوے سپين خط.

**واټڼ** :- (وا + ت + ڼ)(اس ، مذ ، ج ــ ونه) فاصله ، واټن.لکه : د دواړو کلو تر مېنځه واټڼ تر دريو ميلو زيات نۀ دے. (بل)

**واتۀ** :- (وا + ت)(حمص) وتنه ، باهر کېدنه ، خارج کېدنه.

**ــــ ننه واتۀ** :- بيا بيا دننه تلل او باهر راوتل. داخلېدنه او خارجېدنه.

**ــــ ننه واتۀ** :- د کوم ځاے نه/څخه باهر وتل (او) بيا دننه تلل. مجازاً: امدرفت ، تګ راتګ.

**واټ** :- (وا + ټ)(اس ، مذ ، ج ــ ونه) لار ، سړک.

**واټ** :- (وا + ټ)(انګ ، اس ، مذ ، ج ــ ونه)د بجلۍ د رَو د اندازې يوکے (اکائي).

**ــــ مېچ** :- (ــــ مې + چ).

**ــ مېچے** :- (مې + چے)(پ تر ، اس ، مذ) د لارې ياد سفر د کچ اله.

**واټر** :- (وا + ټ + ر)(انګ ، اس) اوبۀ ، اب (په پښتو کښې عموماً نورو الفاظو سره يو ځاے راځي).

**ــــ پروف** :- (ــــ پ + رو + ف)(انګ تر ، صف) هغه کپړه وغيره چې اوبۀ ترې نشي پورې وتے .هغه څيز لکه ګړۍ ، چې په اوبو کښې نۀ خرابېږي .د اوبو د اثر څخه محفوظ.

**ــــ پولو** :-(ــــ پو + لو)(انګ ، تر ، اس) د پولو يو قسم چې په اوبو کښې لامبوزنۍ سره کولے شي.د اوبو پولو.

**ــــ کلر** :- (ــــ ک + ل + ر)(انګ تر ، اس ، مذ) د اوبو سره استعمالېدونکے رنګ ، ابي رنګ.

**واټن** :- (وا + ټ + ن)(اس،مذ،ج ــ ونه) فاصله ، مسافت ، لرې والے.

**ــــ سنجوونکے** :- (ــ س + ن + ج + وو+ ن + کے)(پ تر ، اس ، فا ، ج ــ کي) فاصله معلوموونکے ، د فاصلې اندازه لګوونکے.

**په مساوي ــــ** :- (پ، م + سا + وي ــ)(پ تر ، تف) په يو شان فاصله ، په يو همره مزل

**واټے** :-(وا + ټے)(اس، مذ) طاقت ، قوت ، زور.

**واثق** :-(وا+ث+ق)(ع،صف،مذ،مو ــ ه) محکم ،کلک، ټينګ ،مضبوط.

**واج** :- (وا + ج)(اس ، مذ) بدل ، عوض ، جنس په جنس بدلونه.

**ــــ ورکول** :- جنس د جنس په بدله کښې ورکول ، د څيز په مقابله کښې څيز ورکول

**په ــــ سودا کول** :- (پ ــ سو + دا + ک + ؤ +ل) د جنس په بدل کښې د جنس د اخستلو سودا کول.

**واڅے** :-(وا + (ت) سے)(اس ، مذ ، ج ــــ څي) بارخو ، رخسار ، مخ.

**واڅکول** :- (وا +(ت) س+ک +ؤ + ل)(مص) جذب کول ، راښکل.

**واج** :- (وا + ج)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) بدل ، څيز په څيز بدلونه ، د جنس سودا په جنس سره کونه.

**واجب** :-(وا+ج +ب)(ع، صف ، مذ ، مو ــــ ه) ضرور ، لازم ، مناسب (فقه) هغه کار ، چې بغېر له کوم عذر څخه ئې نۀ کول ، بني ادم د عذاب مستحق ګرځوي. هغه فرض مکسور چې د کسر عدد ئې د مخرج د عدد نه/څخه وړوکے وي. تنخواه ، شاهره هغه هستي چې د خپل وجد د بقا دپاره د بل واجب نۀ لري.خداے پاک.

**ــــ الاتباع** :- (ــ (ب +ل) ا+ت+ ب + ع)(ع ، تر ، صف) هغه چې پيروي ئې لازمه يا ضروري وي.

**ــ الادا** :- (ــ (ب+ل) + ا + دا)(ع ،تر،صف) هغه رقم يا رقومات کوم چې ادا کول غواړي.

**ــــ التسليم** :- (ــ (ب +ل + ت+س + لي + م)(ع ، تر،صف) هغه خبره چې منل ئې ضروري وي.

**ــــ التعزير** :- (ــــ (ب+ت+ ت + ع + زي+ر)(ع،تر،صف) هغه چې سزا ورله ورکول ضروري وي.د سزا وړ.

**ــ التعظيم** :- (ــ (ب+ت) ت + ع+ ظي + م)(ع،تر،صف) هغه کس چې تعظيم او عزت کول ئې ضروري وي.

**ــــ التعميل** :- (ــ (ب+ت) ت+ ع + مي +ل)(ع ،تر، صف) هغه حکم يا کار چې په عمل کښې راوستل ئې ضروري وي.

**ــــ الرعاية** :- (ــ بُ+ر + عا + يَ + ت)(ع تر،صف) هغه کار يا څيز چې د رعايت وړ وي يا رعايت ورسره کول ضروري وي.

**ــــ الطلب** :- (ــــ (ب+ط) ط + ل + ب)(ع،تر،صف) هغه څيز وغيره چې غوښتنه ئې ضروري وي.د طلب وړ.

**ــــ الاظهار** :-(ــ (ب+ل) ا+ظ+ ها + ر)(ع،تر،صف)هغه خبره وغيره چې څرګندونه ئې ضروري وي.

**ــ القتل** :-(ــ (ب+ل) ق + ت + ل)(ع،تر،صف) هغه سړے چې وژل/ وجل ئې ضروري وي.د قتل وړ.

**ــــ الوجود** :- (ــ (ب + ل+) و+ جو+ د)(ع،تر،اس،مذ) هغه هستي چې وجود ئې واجب وي يعني خداے پاک.

**ــــ الوصول** :- (ــــ (ب+ل) و + صو +ل)(ع ، تر) هغه رقم وغيره چې وصلي (بېرته اخستنه) ئې ضروري وي.

**ــــ کول** :- ضروري ګرځول ، فرض ګرځول.

**ــــ کېدل** :- لازم کېدل ، فرض کېدل ، ضروري ګرځېدل.

**ــــ ګڼل** :- فرض ګڼل ، ضروري ګڼل.

**واجبات** :- (وا + ج + با + ت)(ع ، اس ، ج) د واجب جمع ده (فرضونه) ضروري څيزونه ،تنخواه ګانې ، شاهرې .هغه رقومات چې وصولي ئې نۀ وي شوي.واجب الوصول رقومات.

**واجبه** :- د واجب تانیث دے۔د واجب بدل شکل دے۔

**واجبي** :- (وا + ج + بي)(ع تر ، صف) هغه چې واجب وي۔ مجازاً: مناسب ، درست لکه: واجبي اجرت۔

**ــــ غونډې** :-(ــــ غُ/غو+ن+دِ) هغه چې واجب سره سم وي۔برابر، مناسب ، متوسط۔

**ــــ قیمت** :- (ــــ قي + م + ت)(عب تر،اس،مذ،ج ــــ ونه) د کوم څیز هغه بیعه چې د ضرورت یا حق لري یا سمه وي۔کمه یا زیاته نهٔ وي۔مناسب قیمت۔

**واح** :- (وا + ح)(حرف)د افسوس تورے دے۔ویش۔

**واحد** :-(وا + ح + د)(ع ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) یو ، تنها ، یکړ ، یګانه ، یکي یو د خدا ے پاک یو صفاتي نوم۔د نارینهٔ په نومونو کښې راځي۔

**ــــ العین** :- (ــــ (د+ ل) عې + ن)(ع تر ، صف) یوې سترګې واله ، کاڼے۔

**په ــــ وخت کښې** :- (پ ـ و+خ+ت+کې)(عب تر،اس،ظر) په یو وخت کښې۔

**واحده** :- (وا + ح + دَ) د ,, واحد ،، تانیث دے۔

**ــــ لار** :- (ــــ لا+ ر)(عب ، تر ، اس ، مو) یکي یوه لار۔

**واحدي** :- (وا + ح + دي)(ع پ تر ، اس ، مو) یو والے ، یوائې والے ، یوائتیا ، یکړ والے۔

**واحه** :-(وا + حَ)(ع ، اس ، مو، ج ــــ حې) واح ، په صحرا کښې شین ځا ے چېرته چې اوبهٔ وي۔نخلستان۔

**سمسوره ــــ** :- (س+م+سو+ رَ ــــ)(ع ، پ تر ، اس مو ج ــــ حې) په صحرا کښې هغه ځا ے چې شین شینکے لري۔نخلستان۔

**واخ** :-(وا + خ)(اس ، مذ) فریاد ، آه ، زاري۔

**ــــ کول** :- فریاد کول ، آه کول ، زاري کول۔

**واخله** :- (وا + خ + لَ)(فعل) د اخیستل مصدر نه /څخه د امر صیغه ۔د حېرت د توري په طور هم استعمالېږي۔

**واخهٔ** :-(وا + خ)(اس ، جم) واشهٔ ، واښهٔ ، ګیاه۔

**واخېر** :-(وا + خې + ر)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) اخور۔

**واخاڼې** :- (وا + خا + ن + ړ + ی)[و+خا+ڼئ](فعل) د ,, واخې ،، زوړ شکل دے۔

**وادار** :- (وا + دا + ر)(ف تر ، صف ، مذ ، مو ــــ ه) مجبور ، په کوم کار مجبوره کړے شوے۔

**ــــ کول** :- مجبوره کول۔

**وادارول** :- (وا + دا + ر + ؤ + ل)(مص) مجبورول۔

**وادګنے** :-(وا + د + ګ + نے)(پ تر ، اس ، مذ ،ج ــــ ګني) د وادهٔ زلمے ، د وادهٔ هلک۔

**واده** :- (وا + دَ)(اس،مو،ج ــــ دې) ,, وعده ،، بدل شکل دے۔(و ــــ وعده)۔

**وادهٔ** :-(وا + دهٔ)(اس ، مذ ، ج ــــ ودونه) د هلک جینۍ د ښځې خاوند په رشته کښې تړلے کېدل ، ازدواج۔

**ــــ تړ** :- (ــــ تړ + ر)(پ تر ، اس ، مذ) د وادهٔ بندوبست ، وادهٔ جوړونه ، د وادهٔ انتظامات۔

**د ــــ ټک ټوک** :- (د ــــ ټ+ ک + ټو+ک)(پ تر،اس،مذ،ج) د وادهٔ مختلف قسمه خرڅونه ، لکه: وادهٔ آسان دے خو ټک ټوک ئې ګران وي۔

**د ــــ جامې** :- (د ، ــــ جا + مې)(و ــــ د وادهٔ جوړه)۔

**د ــــ جوړه** :- (د ، ــــ جو + ړَ)(پ تر،اس،مو،ج ــــ ړې) هغه خاص جامې چې د وادهٔ په موقع هلک یا جینۍ دپاره جوړولے شي۔خصوصاً د ناوې جوړه۔

**ــــ جوړېدل** :- د وادهٔ انتظامات شروع کېدل۔

**د ــــ زلمے** :- د ــــ ز + ل + مے)(پ تر،اس ، مذ،ج ــــ مي) هغه هلک یا زلمے چې وادهٔ ئې کېږي وادګنے۔(اُر = دولها)۔

**ــــ شوې** :- (ــــ ش + و ے)(پ تر،اس ، مف ، ج ــــ وي) هغه جینۍ چې په نکاح کښې چاله ورکړے شوے وي۔هغه ښځه چې مېړهٔ لري۔

**ــــ کړے** :- (ــــ ک + ړے)(پ تر،اس،مف،ج ــــ ړي) هغه زلمے یا ښځه چې وادهٔ ئې شوے وي۔

**ــــ کول** :-په نکاح کښې ورکول ، ودول۔(خج په ,, ؤل ،، دے)۔

**ــــ کېدل** :- ودېدل ، په نکاح ورکړے کېدل۔(خج په ,, دل ،، باندې دے۔

**د ــــ نېټه** :- (د ــــ نې + ټَ)(پ تر،اس،ظر) د وادهٔ دپاره مقرر ورځ او تاریخ۔

**د ــــ نېټه کښېښودل** :- د وادهٔ دپاره ورځ او تاریخ مقررول۔

**ــــ وال** :-(ــــ وا + ل)(پ تر،اس،مذ) وادهٔ کړے ، د کور خاوند ، ښځه لرونکې۔ هغه چې وادهٔ ئې کېدونکے وي ۔هغه خلق چې په کور کښې ئې وادهٔ انتظامات روان وي۔

**ــــ واله** :- هغه جینۍ چې وادهٔ ئې کېدونکے وي۔

**د ــــ مجلس جوړول** :- د وادهٔ په موقع خپل خپلوان راجمع کول۔

**د ــــ هلک** :- (د ــــ هـ + ل + ک)(و ــــ د وادهٔ زلمے)۔

**د ګنجۍ ــــ** :- (د + ګ + ن + ج + ۍ ــــ)(پ تر،اس،مذ) مجازاً: هغه کار چې نهٔ کېدونکے وي۔ناشونے کار ، هغه کار چې د کېدلو توقع ئې نهٔ وي۔ وے د ګنجۍ وادهٔ دے ۔وے باور مې نشي ۔ (متل)(د یوې ګنجۍ جینۍ چې هر کله به وادہ جوړ شو۔نو څهٔ نا څهٔ اړیکه به په کښې پېدا شوه ۔بیا چې هر کله به چا دغې ګنجۍ ته وے چې ستا وادهٔ دے هغې به په جواب کښې وے چې اعتبار مې نشي۔ځکه د داسې کار په حقله وئیلے شي۔چې په سر کېدو کښې ئې څهٔ نا څهٔ اړیکه پېدا شي)۔

**وادي** :-(وا + دي)(ف،اس،مو،ج ــــ انې) د دوهٔ غرونو یاد غرونو دسلسلو په مېنځ مېداني یا څهٔ قدرې هواره علاقه (ددې جمع وادئ او وادي ګانې هم راځي)۔

**ــــ ګانې** :- (ــــ ګا + نې) د وادي ،، بل رنګ جمع ده۔

**وادئ** :-(وا + د + ئ) د ,, وادي ،، جمع ده ۔ د ,, وادئ ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي۔

**وادے** :-(وا + دے) د ,, وادهٔ ،، جمع ده۔وعدے۔

**وار** :- (وا + ر)(اس ،مذ،ج ــــ ونه) ځل ، نوبت ، دفعه ، بار موقع ، سمے۔

**ــــ ته کتل** :- د خپل نوبت انتظار کول۔د مناسبې موقعې انتظار کول۔

**ــــ تېرول** :- خپل وخت تېرول ، خپل دوران تېرول (عموماً خپل هم ورسره وئیلے شي)۔

**ــــ په وار** :- (ــــ پ + وا + ر)(پ تر ، تف) په خپل خپل نوبت ۔یو پسې بل ، په ترتیب سره۔

**ــــ راتلل** :- موقع راتلل ، مناسبه موقع راتلل،نمبر راتلل۔

**ــــ جوړېدل** :- واره سازېدل ، موقع په لاس ورتلل ، لاس یا وس بر کېدل۔

**ــــ کتل** :- وار ته کتل ، موقعې ته کتل ، د موقعې انتظار کول۔

**اول ــــ** :- (او + و + ل ــــ)(پ تر ، مذ) اول ځل ، اولنے نوبت ، اولنئ موقع۔

**په ــــ** :- (پ ــــ)(پ تر،اس ،مذ ، ج ــــ ونه) په خپل نوبت۔ په قلار ، په مزه ۔

**په ــــ وار** :- (پ ــــ وا + ر)(پ تر،تف) په بیا بیا ، په بار بار۔

**په خپل ــــ** :- (پ +خ + پ + ل ــــ)(پ تر،تف) په خپل نوبت ، په خپل نمبر ، په خپله موقع۔

**یو ــــ** :- (یو ــــ) یو ځل ، یو ځلې ، په یو موقع۔

**یو ــــ بیا** :- (یو + ب + یا)(پ تر،جمله) یو ځل بیا ، (ووایه یا وکړه) مکرر۔

**په یو ــــ** :- (پ + یو ــــ)(پ تر،اس،مذ) په یو ګذار ، په یو ضرب ،په یو ځل ، په یو نوبت۔

**وار** :- وا + ر) اس ،مذ ، ج ــونه) دوره ، دوران.

څو چې د زېړو ګلو وار دے

بورا دې کبر تر هغې پورې کوينه (ټپه)

**ــــ پار** :- (ــــپا + ر) (پ تر ،اس) په دې پار تابع مهمل دے. ,,وار،، سره د تاکيد دپاره راځي.

**ــ پار خطاکېدل** :- بېخي وار ،خطا کېدل ،بالکل حوصله بېلل.

**وار** :- (وا + ر) (اُر ،اس ،مذ ،ج ــــونه) ګذار ،ضرب ،په يو ځل تيرئ او سختي سره وهنه. لکه د تورې وار.

**ــ کول** :- ګذار کول ، ضرب لګول. لکه : تورې وار ئې پرې وکړ!

**وارتل** :- (وا + ر + ت + ل) (مص) اړتاؤ کول ، غورزول ، اړتاوؤل ، په زور سره لرې غورزول.

**وارتۀ** :- (وا + ر + ت) (حمص) اړتاوؤنه ، غورزونه ، ارتنه.

**وارث** :- (وا + ر + ث) (ع،اس،مذ ،ج ــان) هغه چې ورته د چا ميراث رسي. سرپرست ، مشر ، خاوند هغه چې کوم علم يا هنر ورته د پلار نيکۀ نه /څخه پاتې شوے وي.

**ــــ کول / ګرځول** :- د خپل مال جائيداد وغېره وارث مقررول.

**شرعي ــــ** :- (ش + ر + عي ــــ) (عف تر ،اس ،مذ ،ج ــان) هغه سړے چې د شريعت د قانون مطابق د چا وارث وي.

**وارثه** :- (وا + ر + ثَ) (اس،مو،ج ــانې) د ,,وارث،، تانيث دے.

**وارد** :- (وا + ر + د) (ع،اس،فا ،مذ ،ج ــان/ين) راتلونکے ، رارسېدونکے ،پېښ کېدونکے ، موجود.

**ــ کوونکے** :- (ــ ک + وو + ن + کے) (عپ تر ،اس،فا ،ج ــ کي) راوستونکے ، نازل کوونکے ، صادر کوونکے.

**ــــ کول** :- نازل کول ، صادر کول ، راوستل.

**ــــ کېدل** :- راتلل ، نازل کېدل ، صادر کېدل.

**وارده** :- (وا + ر + دَ) (اس، مو ، ج ــــ دې) د ,,وارد،، تانيث دے.

**واردات** :- (وا + ر + دا +ت) (ع ،اس ، ج) د ,,وارده،، جمع ده - وارد شوے حالات ، راپېښ شوې خبرې يا کارونه ، وقوعې ، حادثې جنګ جګړه ، هنګامه (په دې معنٰی کښې د واحد په طور راځي چې جمع ئې وارداتونه ده) ملک ته راتلونکے تجارتي مال ، وارد شوے کلام ، آورد

**ــــ اوصادرات** :- (ــــاو + صا + د + را+ت) (عپ تر ،اس،ج) هغه مال چې د باهر نه ملک ته دننه راځي او هغه مال چې د ملک نه باهر لېږلے شي. امپورټ او ايکسپورټ.

**ــــ کول** :- جنګ جګړه يا مرګ ژوبله کول.

**ــــ کېدل** :- جنګ جګړه يا مرګ ژوبله کېدل ،حادثه پېښېدل ،وقوعه کېدل.

**خفيف ــــ** :- (خ+في+ف ــــ) (عپ،تر،اس ،مذ) معمولي جنګ جګړه.

**سنګين ــــ** :- (س+ن + ګي + ن ــ) (ع پ تر ، اس ، مذ) لوے واردات ، لويه حادثه ، لويه جنګ جګړه چې په کښې سخته مرګ ژوبله شوې وي.

**علمي ــــ** :- (ع + ل + مي ــــ) (عف،تر،اس،ج) هغه راتلونکي يا ملک ته راتلونکي څيزونه چې ,,علم،، سره تعلق لري.

**موقع ــــ** :- (مو + ق + ع ــــ) (ف تر ،اس،مو) هغه ځاے چېرته چې څۀ جنګ جګړه يا مرګ ژوبله يا بله څۀ حادثه پېښه شوې وي.

**وارداتي** :- (وا +ر +دا + تي) (اس،مو) واردات سره تعلق لرونکے.واردات ته منسوب.امپورټ سره تعلق لرونکے.

**واردو** :- (وا +ر + دو) د ,,واردې،، جمع بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي لکه : له واردو خبره څخه معلومېږي .

**واروکه** :- (وا + ر + وُ + کَ) (جمله) صبر وکړه ، لږ توقف وکړه. په داسې موقع وئيلے شي چې د چا نه /څخه څۀ خبره هېره شي.او هغه يادول غواړي.

**واردول** :- (وا + ر + د + ؤ + ل) (مص) وارد کول ، پېښول ، واقع کول ، صادر کول.مال د باهر نه ملک ته راوړل.

**وارده** :- (وا + ر + دَ) (اس ، مو ، ج ــــ ات) واقعه ، پېښه.حادثه و مرګ ژوبله ، جنګ جګړه ، باهر نه /څخه راغلې مراسله.

**واردې** :- (وا + ر + دې) د ,,وارده،، جمع ده - د ,,وارده،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**واردېدل** :- (وا + ر + دې + د + ل) (مص) وارد کېدل ، پېښ کېدل ، واقع کېدل ، صادر کېدل - د باهر څخه (مال) ملک ته راتلل ، امپورټ کېدل.

**واردېدۀ** :- (وا + ر + دې + دۀ) (حمص) وارد کېدنه ، پېښېدل - واقع کېدل ، راتلل ، صادر کېدنه. د مال ملک ته راتلۀ.امپورټ کېدنه.

**وارډ** :- (وا + ر /ړ + ډ) (انګ ،اس ،مذ ،ج ــــونه) ساتنه ، څارنه ، په هسپتال کښې د خاص قسم بيمارانو د ساتنې هال - په جېل خانه دقېديانو ځانګه حلقه ، محصوصه علاقه ، چې يو ممبر ترې منتخب کولے شي - هغه نابالغه هلک يا جينۍ چې د هغه د جائيداد د انتظام او سرپرستۍ دپاره د عدالت د طرفه څوک معتبر سړے يا تولے مقرر کړے شي. ساتندوے.

**وارډن** :- (وا + ر + ډ + ن) (انګ ،اس،مذ ،ج ــان) د ,,وارډ،، نګران ، د وارډ محافظ ساتندوے. د هاسټل مشر ، نګران.سمبالک.

**وارډنه** :- (وا + ر /ړ + ډ + نَ) (انګ ، پ تر ،اس،مو،ج ــــ نې) د ,,وارډن،، تانيث دے.

**وارس** :- (وا + ر + س) تحقيق کوونکے،تجسس کوونکے،تالاشي اخيستونکے.

**وارسي** :- (وا + ر + سي) (ف تر ، اس ، مو) پلټنه ، تحقيق ، تفتيش.

**وارسي** :- (وا + ر + سي) (ف ، اس ، مو).

**وارستګي** :- (وا + ر + س +ت + ګي) (ف تر،اس،مو) ازادګي ، ازادي ، فراغت

**وارسته** :- (وا + ر + س + تَ) (ف ، صف) ازاد ، فارغ البال.

**وارفتګي** :- (وا + ر + ف + ت + ګي) (ف تر ، اس ، مو) مضمله کېدنه.

**وارګړے** :- (وا + ر + ګ + ړے) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ــري) هغه چې په کوم کار کښې د هغه وار يعني نوبت يا نمبر وي.لکه : د جرندې وارګړے.

**وارګۀ** :- (وا + ر + ګ) (اس ، جم) د لنګې شوې غوا يا مېينې د اولنۍ دريو ورځو پئ.چې ګرمولو سره ورانېږي.

**وارنټ** :- (وا + ر + ن+ ټ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ــونه) د عدالت د طرفه د کوم مجرم د ګرفتارولو حکم.د ګرفتارۍ حکم نامه ، طلب نامه.

**ــ افيسر** :- (ــا + في+س+ر) (انګ ، تر ، اس ، مذ ، ج ــان) په فوځ کښې يوه عهده.

**ــــ بلا ضمانت** :- (ــــ ب + لا+ ض +ما + ن+ ت) (انګ ، ف تر ، اس ، مذ) داسې وارنټ چې د ګرفتار شوي سړي ضمانت تر هغې نشي کېدے تر څو چې عدالت ته نۀ وي رسېدلے او عدالت ئې اجازت ورنۀ کړي.

**ــــ جاري کول** :- د عدالت د طرفه د کوم ملزم د ګرفتارولو حکمنامه جاري کول

**وارنش** :- (وا + ر + ن + ش) (انګ ، اس ، جم) هغه خاص قسم تېل چې د لرګي سامان (فرنيچر) پرې زلقوي.

**ــــ کول** :- د لرګي سامان (فرنيچر) په خاص قسم تېلو سره زلقول.

**وارننګ** :- (وا + ر + ن + ن + ګ) (انګ ،اس ،مذ ، ج ــونه) خبردارے ، تنبيه

**ــــ ورکول** :- خبردارے ورکول ، تنبيه کول.

**واره** :- (وا + رَ) د ,, وار ،، بله جمع ده ـ چې عموماً د عدد تورو سره راځي ـ
لکه : دوه اره ، لس واره ـ

**واره** :- (وا + رَ)(اس ، مو ، ج ـــ رې) سمون ، سمے ، مطابقت ، نفع ، فائده ـ (خج په ,, رَ ،، باندې دے) ـ

**ـــــ من** :- (ـــــ م + ن) ـ

**ـــــ مند** :- (ـــــ م + ن + د)(فپ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) فائده مند ، هغه کار چې په کښې څۀ فائده یا ګټه لیدے شي ـ

**ـــــ نۀ راتلل، په څۀ** :- سمے نۀ جوړل ، سمون نۀ راتلل ـ برابر نۀ جوړول ـ

**ـــــ کتل** :- ګټه کتل ، نفع کتل ، فائدې ته کتل ـ

**ـــــ کول** :- ګټه کول ، نفع موندل ـ

**ـــــ موندل** :- موقع موندل ، مناسب وخت راتلل ـ

**ـــــ نۀ خوړل** :- سمون نۀ راتلل ، سمے نۀ خوړل ، فائده (په کوم کار کښې) نۀ لیدل ـ

**بې ـــــ** :- (بې ـــــ)(پ تر ، صف) بې تحاشا ، ډېر زیات ، بې نمبره ـ

**بې ـــــ چغې وهل** :- ډېرې او پرله پسې چغې وهل ـ

**وارۀ** : (وا + رۀ)(تابع ، مهمل) د ,, خوارۀ ،، تابع مهمل دے ـ د خوارۀ په معنې کښې زور پیدا کوي ـ

**خوارۀ ـــــ** :- (خ + وا + ر ـــــ)(پ تر ، صف ، ج) نوستلے شوے ، هر خوا خوارۀ کړے ، تس نس ، تتر بتر ـ

**وارې** :-(وا + رې) د واره جمع ده ـ د واره بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي ـ

**ـــــ ته کتل، خپلې** :- خپل سمون ته کتل ، خپل سمې ته کتل ، خپل طاقت او استطاعت ته کتل ـ

**د ـــــ خبره** :- (پ تر ، اس ، مو) د سمون خبره ، د سمې خبره ، د طاقت وغیره سره د مطابق خبره ـ

**واریز** :- (وا + رې + ز)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) وار لرونکے ، په وار راتلونکے ، نوبت په نوبت راتلونکے ـ

**واریزه تبه** :- (وا + رې + زَ + ت + ب)(پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ بې) هغه تبه چې په دریمه یا څلورمه ورځ پرله پسې راځي ـ

**واړو** :- (وا + ړو) د ,, واړه ،، جمع بدل شکل د مغیره ؤ تورو سره راځي ـ

**په ـــــ کښې** :- (پ ـــ کې)(پ تر ، تف) په ټولو کښې ، په همه ؤ کښې ـ

**واړوه** :- (وا + ړَ + وَ)(فعل) د ,, اړول ،، مصدر نه د امر فعل ـ اړولے کړه ، التيه کړه ـ توے کړه ، تل کړه ـ

**واړه** :- (وا ړَ)(حرف) ټول ، همه ، د سبلمې ـ

**ـــــ کل** :- (پ تر ، حرف) د دواړو لفظونو یو شان معنا ده ـ دویم لفظ د تاکید دپاره راوستے شي ـ

**واړۀ** :- (وا + ړۀ)(صف ، ج) د ,, ووړ ،، جمع ده ـ وړوکي ، کچ ، په جوثه ، جسامت یا د اهمیت په لحاظ سره وړوکي څیزونه یا کارونه ـ

**واړۀ** :- (وا + ړۀ)(اس ، جم) وړوکي هلکان ، ماشومان ، کم عمره هلکان ـ د پښتې / خپې د شا واړه هډوکي ـ

**ـــــ بول** :- متیازې ـ

**ـــــ زاړۀ** :- (ـــــ زا + ړۀ)(پ تر ، اس ، ج) د وړوکي عمر او د زوړ عمر خلق ، مجازاً : ټول خلق چې په کښې واړۀ او لوے ټول شامل وي ـ

**ـــــ زاړۀ** :-(ـــ زا + ک /ژ)(پ تر ، اس ، ج) واړه او نوي زېږېدلي ـ مجازاً : بال بچ ، بچي ـ

**ـــــ نرې څیزونه / کارونه** :- مختلق قسمه څیزونه ، مختلف قسمه کارونه ـ

**واړے** :- (وا+ړے) د ,, واړۀ ،، جمع ده ـ (استعمال ئې عام نۀ دے) ـ

**واړیې** :- (وا + ړي + یې)(پ ، اس ، مو) وړیې ـ د مختلفو دالونو نه جوشوي غونډاري چې په کټوئ کښې پخه ولے شي ـ بړے ، د دالونو نه جوړ شوي پلن کړي غونډاري چې په تېلو کښې تله ولے شي ـ

واړیې په توکو کښې نۀ پخېږي ـ (متل)

**واز** :- (وا + ز)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) پرانستے ، کشاده ، ویړ ـ

**ـــــ خولې** :- (ـــــ خُ / خو + لې)(پ تر ، صف ، مذ ، ج ـــ لې) هغه چې خولۀ ئې وازه وي ـ هغه چې خولۀ ئې وازه نیولې وي ـ ویړ خولې مجازاً : کم عقل ، ساده ـ بې وقوف ـ

**ـــــ سترګې** :-(ـــ س+ت+ر+ګې)(پ تر ، صف ، مذ ، ج ـــ ګې) مجازاً : بې شرمه ، بې حیا ـ

**کنه ـــــ** :- (ک + نَ ـــــ)(پ تر ، صف ، مذ) مجازاً : کلانکار ، ځان ښوونکے ـ

**ـــــ کول** :- (و ـــ وازول) ـ

**واز** :- (وا + ز) (لاحقه / سابقه) د فارسي د ,, باز ،، بدل دے چې ځینو اسمونو سره راځي خو په پښتو کښې د لاحقې او سابقې په دواړه ډوله استعمالېږي ـ (او استعمال ئې کم دے) او د پرانستې ، ویړ معنې ورکوي لکه واز سترګې ، یا کته واز ـ

**وازدک**:- (وا + ز + د + ک)(اس ، مذ) یو قسم بوټے دے ـ

**وازده** :- (وا + ز + د)(اس ، مو ، ج ـــ دې) چربي ، وازګه ـ

**په سترګو ـــــ راتلل** :- مجازاً : بې شرمه کېدل ، بد لحاظه کېدل ـ

**وازول** :- (وا + ز + ؤ + ل)(مص) پرانستل ، کشاده کول ، ویړول ـ

**وازونه** :- (وا + ز + ؤ + ن)(حمص) پرانستنه ، کشاده کونه ، کولاوُونه ، ویړونه ـ

**وازه** :- (وا + زَ)(اس ، مو ، ج ـــ زې) قلاچ ، هغه فاصله کومه د دواړو وزا کړو لاسونو تر مینځه وي ـ

**وازه** :- (وا + زَ)(صف ، مو ، ج ـــ زې) د ,, واز ،، تانیث دے ـ

**ـــــ خولۀ ودرېدل** :- حېران ودرېدل ، بقه خولۀ ودرېدل ، حق بق پاتې کېدل ـ

**وازېدل** :- (وا + زې + د + ل)(مص) پرانستے کېدل ، کشاده کېدل ، ویړېدل ,, کولاوېدل ،، ـ

**واژګون** :-(وا + ژ + ګو + ن)(ف ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) اړولے ، پړمخے ، اُلټه ، سر د لاندې ـ

**واژګونه** :- (وا + ژ + ګو+ نَ)(و ـــ واژګون) ـ

**ـــــ کېدل** :- اړولے کېدل ، الټه کېدل ، اپوټه کېدل ـ

**واژه** :- (وا + ژَ)(حمص) وژنه ، وجنه ، قتل ـ

**واژۀ** :- (وا + ژ)(ف ، اس ، مو) کلمه ، لفظ ـ

**واږمه** :- (وا + ګ / ژ+ مَ)(اس مو ، ج ـــ مې) ووږمه ، د هوا چپه ، د نسیم باد ، د سحر باد ـ

**واست** :-(وا + س + ت)(فعل) د ,, وئ ،، بدل شکل دے ـ لکه : تاسې راغلي واست ـ (وئ) ـ

**واسط** :- (وا + س + ط)(ع ، اس ، فا ، ج ـــ ان) د مېنځ ، مینځنے ، اوسط ، میانجي ، مینځګړے ـ

**واسطه** :-(وا + س + طَ)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ طې /وسائط) هغه څیز چې د دوۀ څیزونو په مېنځ کښې تعلق پیدا کوي ـ ربط ، تعلق ، ذریعه ـ منځګړے ، ثالث ـ

**بې ـــــ** :- (بې ـــــ) ـ

**بلا ـــــ** :-(ب + لا ـــ) بې د کومې ذریعې نه /څخه ـ بې د کوم منځګړي ، نېغ په نېغو ـ

**په ـــــ** :- (پ ـــــ)(عپ ، تر ، تف) په ذریعه ـ

**ـــــ پرېوتل** :-

**ـــــ راتلل** :- تعلق پیدا کېدل ، چا سره معامله راتلل ، چاته څۀ کار پېښېدل ـ

**ـــــ پیدا کول** :- تعلق پیدا کول ، اشنائي جوړول ـ

**ـــــ نهٔ لرل** :- تعلق نهٔ لرل، تړون نهٔ لرل.

**واسع** :-(وا + س + ع) (ع، اس، فا، جـــ ان) وسعت لرونكے، خوور وور، ارت بېرت. د خداے پاک يو صفاتي نوم. د نارينه په نومونو کښې راځي.

**واسکټ** :- (وا + س + ک + ټ) (انګ، اس، مذ، جـــ ونه) لنډے کوټ، چې تر ملا پورې وي. خو لستوني نهٔ لري. بې لستوڼو صدرۍ.

**واسوخت** :- (وا + سو + خ + ت) (ف، اس، مذ) ويزاري، کرکه. د نظم يو قسم چې د مسدس په شکل کښې وي او په کښې د معشوقې بد او د خپل تکليف او غم څرګندونه او بيا خپله ويزاري په کښې بيان شوې وي. (په پښتو شاعرۍ کښې دا قسم نهٔ دے ليدلے شوے).

**واسلين** :- (وا + س + لي + ن) (انګ، اس، جم) ويزلين، وېسلين، هغه ملهم چې په مخ يا لاسونو لګولے شي.

**واسه** :-(وا + سَ) (اس، مو، جـــ سې) د غنمو د وړې لشې. د اسو مياشت.

**واسيکه** :- (وا + سي + کَ) (اس، ظر) فوراً، في الحال، مخې سره، په دې دم.

**واش** :- (وا + ش) (اس، مذ) بې پورا، بې واکه.

**واش** :- (وا + ش) (ف، اس، جم) وابښهٔ، ګياه.

**واشنګ** :- (وا + ش + ن + ګ) (انګ، اس) وينځنه، مينځنه.

**ـــــ پوډر** :- (ـــــ پو + ډ + ر) (انګ، تر، اس، جم) هغه خاص قسم پوډر چې د جامو د وينځلو دپاره پکارولے شي او خاص طور سره د جامو د وينځلو په مشين کښې پکارولے شي.

**ـــــ مشين** :- (ـــــ م + شي + ن) (انګ، تر، اس، مذ، جـــ ونه) د جامو د وينځلو هغه مشين چې په بجلۍ چلېږي.

**واشکے** :- (وا + ش + کے) (و ـــ وابښکے).

**واشهٔ** :-(وا + ش) (اس، جم) وابښهٔ، ګياه.

**واښ** :-(وا + خ / ش) (اس، مذ) د ژغوني يا د وړې غټ پړے، د څپلۍ يوه حصه

**ـــــ او غاړه کېدل** :- رسۍ او مرۍ کېدل، ځان مجرم تسليمول او سزا ته تيارېدل. خپل ځان مجرم نهٔ ګڼل ځکه وئيلے شي چې که زهٔ مجرم ثابت شوم نو ستا پړے او زما غاړه. يعني بيا چې څهٔ سزا راکوې نو راکړه. (اصلاً يو پخوانے رسم وو. چې مجرم به دعويدار له په خولهٔ کښې وابښهٔ نيولے او پړے په مرۍ کښې اچولے، جرګې سره تهٔ. دا د انتهائي درجې عاجزۍ اظهار وو)

**ـــــ او غاړه کېدل** :- پړے او مرۍ کېدل. مجازاً: ډېر زيات سره نزدې کېدل، ډېر ژور / جوړ تعلق لرل.

**واښ او غوزے سره ختل** :- محاوره ده پړے او پښتاره د يو بل څخه جدا کېدل، مجازاً: کار خرابېدل، معامله خرابېدل.

**زما غاړه او ستا ـــــ** :-(پ تر) زما غاړه او ستا پړے، يعني اختيار ستا دے چې څهٔ راسره کوې. يعني تاته اختيار دے چې زما په حقله څهٔ حکم کوې.

**وابښکے** :-(وا + خ / ش + کے) (لاس، مذ، جـــ کي) وړوکے واښ، وړوکے يا نرے پړے د انګورو خوشه.

**وابښهٔ** :- (وا + خ / ش) (اس، جم) ګياه، واخهٔ، واشهٔ.

**ـــــ په خولهٔ کښې نيول** :- د ډېرې زياتې عاجزۍ اظهار کول لکه چې زهٔ ستا څاروے يم. څهٔ چې دې زړهٔ راسره وکړه. که حلالوې مې که پرېږدې مې. (دا يو پخوانے رسم پاتې شوے دے).

**ـــــ رېبل** :- (و ـــ وابښهٔ کول).

**ـــــ کول** :- د پټې يا دښتې زمکې نه/څخه په لور يا رنبې وابښهٔ پرې کول.

**ـــــ کېدل** :- وابښهٔ پيدا کېدل.

**ـــــ والا** :- (ـــــ وا + له) (پ تر، اس، مذ) وابښهٔ خرڅوونکے، وښو واله.

**اوچ ـــــ** :- (وُ + چ ـــ) (پ تر، اس، جم) هغه وابښهٔ چې اوچ شوے وي اوچ شوي وابښهٔ. اوچه ګياه. (په مقابله کښې د شنهٔ وابښهٔ).

**شنهٔ ـــــ** :- (ش + ن ـــ) (پ تر، اس، جم) هغه وابښهٔ چې لا تازه وي. تازه رېبلے شوي وابښهٔ. شنه ګياه.

**وابښکے** :- (وا + خ / ش + کے) (اس، مذ، جـــ کي) پړے، د تنبو پړے، تناؤ، چورتول.

**ـــــ غوړول، ورته** :- کوم څيز د تړلو دپاره پړے خورول. مجازاً: هر څهٔ د مخه وړلو تکل کول. د هر څهٔ د وړلو قصد کول. ځادر ورته غوړول.

متل دے چې يو وے کور مې درنه ځار شه، بل سړے ورته خور کړ.

**وابښے** :- (وا + خے / شے) (اس، مذ، جـــ ښي) پړے، غټ پړے.

**وابښے** :-(وا + خے / شے) (اس، مذ، جـــ ښي) هار، امېل، لړ.

**واصف** :-(وا + ص + ف) (ع، اس، فا، مذ، جـــ ان) وصف کوونکے، وصف بيانوونکے، صفت کوونکے، ستائينه کوونکے.

**واصفه** :- (وا + ص + فَ) (عب تر، اس، مو، جـــ فې) د ,,واصف،، تانيث دے.

**واصل** :-(وا + ص + ل) (ع، اس، فا، جـــ ان) واصل کوونکے، ملاوېدونکے، يو ځاے شوے، ملاؤ شوے، جخت شوے. حاصلېدونکے، د وصول کېدو وړ.

**ـــــ کول** :- ملاو ول، يو ځاے کول. مجامعت کول، وصل کول.

**ـــــ کېدل** :- چا سره يو ځاے کېدل، ملاوېدل، ورجختېدل. کوروالے کول، مجامعت کول.

**واصله** :- (وا + ص + لَ) (عب تر، اس، مو، جـــ لې) د ,,واصل،، تانيث دے.

**ـــــ کول** :- ځان سره ملاؤل (ښځه). کوروالے (ورسره) کول.

**ـــــ کول، (خبره)** :- د خبرې وضاحت کول، خبره پوره پوره څرګندول.

**واضح** :-(وا + ض + ح) (ع، اس، فا، ج، ان) وضاحت کوونکے، شرح کوونکے، وضاحت لرونکے، ظاهر، ښکاره، صفا، ښکاره چې په پوهېدلو يا لوستلو کښې ئې څهٔ ګرانتيا نهٔ وي.

**ـــــ بيان** :- (ـــــ ب + يا + ن) (عف، تر، اس، مذ، جـــ ونه) داسې بيان چې صفا وي څهٔ شے په کښې پټ نهٔ وي.

**ـــــ حقيقت** :- (ـــــ ح + قي + ق + ت) (عف، تر، اس، مذ، جـــ ونه) ښکاره حقيقت، داسې حقه خبره چې څرګنده وي. څهٔ شک شبه په کښې نهٔ وي.

**ـــــ کول** :- صفا کول، صفا بيانول، ښکاره کول، څرګندول، وضاحت کول.

**په ـــــ ډول** :-(پ ـــ ډو + ل) (پ تر، تف) په ښکاره طريقه، په داسې انداز چې پوهېدنه پرې اسانه وي. څهٔ شے په کښې پټ او شک کښې اچوونکے نهٔ وي.

**واضحاً** :- (وا + ض + ح + ن) (ع، تف) په واضح ډول، د وضاحت په طور.

**واضحه** :- (وا + ض + حَ) (عب تر، اس، مو، جـــ حې) د ,,واضح،، تانيث دے.

**ـــــ خبره** :- (ـــــ خ + ب + رَ) (عب تر، اس، مو، جـــ رې) ښکاره خبره، څرګنده خبره، داسې خبره چې کوم رخ ئې پټ نهٔ وي.

**واضع** :- (وا + ض + ع) (ع، اس، فا، جـــ ان) وضع کوونکے، نوے څيز جوړوونکے، لکه: د قانون واضع.

**واعظ** :-(وا + ع + ظ) (ع، اس، فا مذ، جـــ ان / ين) وعظ کوونکے، نصيحت کوونکے (بله جمع ئې وعاظ هم راځي).

**واعظه** :- (وا + ع + ظَ) (عب تر، اس، مو، جـــ انې) د ,,واعظ،، تانيث دے.

**واعظي** :- (وا + ع + ظي) (عب، تر، اس، مو) وعظ کونه، نصيحت ګري.

**ـــــ کول** :- د واعظ کار کول، وعظونه کول. نصيحتونه کول.

**واعي** :- (وا + عـي)(ع ، اس ، فـا ، ج ـــان) يـاد لـرونكے ـ پـه نظـر كښـې ساتونكے ـ
**ــــ عقل** :- (ـــ ع + ق + ل)(عپ تر ،اس،مذ) د ياد لرلو پوهه ـ
**واعيه** :- (وا + عي + يَ)(اس ، مو ، ج ـــ يې) د ,, واعي ،، تانيث دے ـ
**واف** :- (وا + ف)(ع ، اس ، مـذ) بلبـل ، ويـونكے ـ سـندر غـاړے ، ښـكلے اواز لرونكے ـ نغمې ويونكے ـ
**وافر** :-(وا + ف + ر)(ع ، اس ، صف ، مـذ ، مـو ـــ ه) وفـر لـرونكے ، ډېـر زيات كثـرت لـرونكے ـ د علم عروض د يو بحر نوم چې پـه كښـې ,,مفاعلاتن،، شپږ ځله راځي ـ
**وافره** :-(وات+ف+رَ)(عپ ، تر ، صف ،اس ،مو،ج ـ رې) د ,, وافر ،، تانيث دے ـ
**واق** :- (وا + ق)(ع ، اس ، صوت) د سپي غپا ، غپېدنه ، د يـوې مرغـۍ نـوم ـ بګلې ـ چې اكثر د اوبو په غاړه ليدے شي ـ بغ ـ
**واقع** :-(وا + ق + ع)(ع ، اس ، مذ) واقـع كېـدونكے ، پېښـېدونكے ، كېـدونكے ـ اصلي ، حقيقي ـ
**ــــ بيني** :- (ـــــ بي + ني)(عف ، تر ، اس ، مو) حقيقت خوښـونه ـ لكـه : د واقع بينۍ نه كار اخيستل ـ
**ــــ كول** :- داخله ؤل ، كښې يستل ـ
**ــــ كېدل** :- پېښـېدل ، په وقع كښې راتلل ـ
**واقعاً** :- (وا + ق + ع + ن)(ع ، تف) پـه واقـع كښـې ، د حقيقت پـه طـور ، پـه حقيقت كښې ـ
**واقعات** :- (وا + ق + عا + ت)(ع ، اس ، ج) د ,, واقعه ،، جمع ده ، پېښې ـ حادثې ـ
**ــــ پسندي** :- (ـــ پ + س + ن + دي)(ع ، ف تر ، اس مو) د حقيقت خوښونه ـ
**واقعه** :- (وا + ق + ع)(ع،اس،مو،ج ـ عې / ات) پېښـه ،واقـع كېـدونكې خبـره ، حادثه واردات ـ
**ــــ او ډكه پېښېدل** :- څۀ واقعه او صدمه چاته رسېدل ـ
**ــــ بيانول** :- د كـومې پېښـې احـوال بيـانول ، (زبـاني وي او كـه پـه ليـك كښـې وي)
**ــــ كېدل** :- حادثه پېښـېدل ، څۀ بده خبره پېښېدل ـ
**ــــ نګار** :- (ـــ ن + ګا + ر)(عف تر ،اس،مذ،ج ـ ان) هغـه سړے چې پـه ملـك كښې پېښـېدونكې حالات ، پـه ليـك كښـې راولـي ـ داخبارنامـه نګـار ، اخبارنويس ـ
**واقعي** :-(وا + ق + عي)(عف ، تر ، تف) پـه واقـع كښـې ، پـه رښـتيا ، پـه حقيقت كښې ـ
**پهـــ صورت** :- په رښتيا ، په حقيقت كښې ، واقعاً ـ
**واقعيت** :-(وا + ق + عـي + ي + ت)(ع ، اس ، مـذ) حقيقـت ، رښـتيا والـے ، رښتيا
**ــــ موندل / مېندل** :- حقيقت ګرځېدل ، رښتيا كېدل ـ
**واقف** :-(وا + ق + ف)(ع ، اس ، فـا و مـذ ، ج ـ ان / ين) وقـوف لـرونكے ،اګـاه ، خبر ، شناسا ، پېژندوي،اشنا ،بلد ـ
**ــــ الحال** :- (ـــ (ف+ ل) + حا + ل)(و ـــ واقف حال) ـ
**ــــ تيا** :- (ـــ ت + يا)(عپ اس ، مو) واقفيت ، پېژندګلوي ـ شناسائي ، اشنائي ـ
**ــــ حال** :- (ـــ (ف) حا + ل)(عف تر ،اس ،مذ) هغـه چې د حـال يـا د حقيقت څخه واقف وي ـ هغه چې اصل حال ورته معلوم وي ـ
**ــــ كول** :- اګاه كول ، خبرول ـ پېژندګلوي پيدا كول ، شناسا كول ـ
**ــــ كېدل** :- اګاه كېدل ، خبرېدل ، شناسا كېدل ، پېژندګلوي پيدا كېدل ـ
**واقفيت** :- (وا + ق + فـي + ي + ت)(ع ، اس ، مـذ) پېژنـدګلوي ، شناسـائي ، اشنائي ، اګاهي ـ
**ــــ پيدا كول** :- شناسائي پيدا كول ، پېژندګلوي پيدا كول ، اشنائي پيدا كول ـ پوهه پيدا كول ، علم حاصلول ـ
**ــــ لرل** :- پېژندګلو لرل ، شناسائي لرل ، پوهه لرل ،واقف ,,بودل ،، علم لرل ـ
**واك** :- (وا + ك)(اس ، مذ ،ج ـ ونه) اختيار ، طاقت ، قوت ـ
**ــــ اختيار** :-(ـــ ا + خ+ ت + يا + ر)(فپ ، تر ، اس ، مذ) د دواړو لفظونـــو تقريباً يو شان معنې دي ـ دويم لفظ د اولني تاكيد كوي ـ پوره اختيار ـ
**ــــ اختيار لرل** :- د واك اختيار ښـبنتن ,, بودل ،، ـ
**ــــ اخيستل ، د څۀ** :- اختيار اخيستل ، ځان اختيارمند كول ، مختار كېدل ـ
**ــــ بيا موندل** :- اختياربيا موندل ، وس بيا موندل ـ
**پهـــ كښې ,, بودل ،،** :- پـه اختيـار كښـې ,, بـودل ،، ـ پـه كـوم خبـره اختيـار يـا وس رسېدل ، لكه : دا كار زما په واك كښې نۀ دے ـ
**تـرـــ لانـدې** :- (ت + ر ـــ لا+ ن + دې)(پ تـر ، صـف) د حكـم لانـدې ، محكوم ـ
**تېـــول ــــ** :- (تېــو + ل ــــ)(پ تر ،اس،مـذ ،مو ــ ه) مكمـل اختيارلرونكے ،مطلق العنان ،كل اختيارے ، مختار كل ـ
**خپل ــــ** :- (خ + پ + ل ـــ)(پ تر ،صف،مذ ،مو ــ ه) خپل اختيار لرونكے
**د ــــ خاوند** :- (د ــ خا + و + ن + د)(پ تر ،اس ،مذ ،ج ـ ان) د اختيـار خاونـد ، اختيار لرونكے ،اختيار مند ، مختار ـ
**ــــ دار** :- (ـــ دا + ر)(پ تـر ، اس ، صـف ، مـذ ، ج ـ ان) واك لـرونكے ، واكمن ، اختيار لرونكے ، اختيار مند ، مختار ـ
**ــــ داره** :- (ـــ دا +رَ)(پ تر ، اس ، مو ، ج ـ رې)د ,, واكدار ،، تانيث دے
**ــــ رسېدل ، په څۀ** :- اختيار رسېدل ، وس رسېدل ، زور رسېدل ـ
**ــــ لاندې** :(ـــ لا+ ن + دې)(پ تر ، صف) هغه چې د اختيـار تر لاندې وي ـ محكوم ـ
**د ــــ لاندې كېدل** :- د اختيار لاندې كېدل ، ماتحت كېدل، محكوم كېدل ـ
**ــــ لرل** :- اختيار لرل ، وس لرل ـ
**ــــ لرونكے** :- (ـــ ل + رو + ن + كے)(اس ، مـذ ، فـا ، ج ـــ كـي)هغـه چې اختيار لري ـ اختيارمن ، واكمن ، مختار ـ
**ــــ من** :- (ـــ م + ن) ـ
**ــــ مند** :- (ـــ م + ن + د)(و ـــ واكدار) ـ
**ــــ مني** :- (ـــ م + ني)(پ تر ، اس ، مو) اختيار مندي ، اختيار لرنه ، اختيار اقتدار ـ
**ــــ منه** :- (ـــ م + نَ) ـ
**ــــ منده** :- (ـــ م + ن + دَ)(پ تر ،صف ، مو ، ج ـ ې) (و ـــ واكداره) ـ
**ــــ ناب** :- (ـــ نا + ب)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ــ ه)(و ـــ واكدار) ـ
**ــــ وال** :- (ـــ وال)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) واك اختيار لرونكے ، وزير
**ــــ وركول** :- اختيار وركول ، اختيار من كول،مختار ګرځول ـ
**ــــ واله** :- (ـــ وا + لَ)(پ تر ، اس ، مو ج ـ لې)(وا ـــ واكداره) ـ
**ــــ واله جرګه** :- (ـــ ج + ر + ګَ)(پ تر ،اس،مو،ج ـ ګې) هغـه ټـولے چې د كوم كار په حقله هر قسم اختيار وركړے شوے وي ـ واكمنه جرګه ـ
**ــــ والے** :- (ـــ وا + لے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـ لي) اختيـار منـي ، واك مني ، اختيارلرنه ـ
**واك آؤټ** :- (وا + ك +آ+ؤ+ټ)(انګ ، تر ، اس ،مذ ، ج ـ ونه) بـاهر تـه وتنـه ، ورچنې وتنـه ـ پـه اجلاس كښـې د ناخوښـۍ د خرګنـدولو دپـاره جلسـې څخه باهر وتنه ـ
**ــــ كول** :- د ناخوښۍ څرګندولو دپاره د جلسې څخه باهر تلل ـ

**واکداره** :-(وا+ک+دا+ر)(صف، اس، مو، ج ــ رې) د ,, واکدار ،، تانیث دے۔

**واکسین** :- (وا+ک+سي+ن)(انگ اس، مذ، ج ــ ونه)(و ــــ ویکسین)۔

**ـــــ کول** : رگ وهل، د خراش په ذریعه دارو د څرمنې لاندې ور رسول۔ خال وهل۔

**ـــــ کېدل** :- رگ وهلے کېدل، د خراش په ذریعه دارو د څرمنې لاندې رسېدل، خال وهلے کېدل۔

**واکف** : (وا+ک+ف)(ع، صف، مذ، مو ــ ه) بهېدونکې۔

**واکه** :-(وا+کَ) د واک یو قسم جمع۔ د واک بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي

**له ـــ وتل** :- له اختیار وتل، له وسه باهر کېدل، دحکم نه / ځخه وتل۔

**بې ـــ** :- د اختیار نه باهر، د قابو ځخه وتلے بې قابو۔

**بې ـــ کېدل** :- بې اختیاره وتل، د قابو ځخه وتل، په قابو کښې نۀ پاتې کېدل۔

**بې ـــ خولۀ خوزول** :- د خولې نه/ ځخه غلطې یا خرابې خبرې اېستل۔

**واکي** :-(وا+کي)(عپ تر اس مو) اختیار لرنه، اختیار۔

**ټول ـــ** :- (ټو+ل ـــ)(پ تر، اس مو) کل اختیاري، هر قسم اختیار لرنه، مطلق العنائي۔

**ـــــ واکي** :- (ــــ وا+کي)(لاحقه) د پښتو لاحقه ده۔ ځینو الفاظو نه/ځخه وروستو لگولے شي۔ او د اختیار معنې ورکوي۔ لکه خپل واکي۔

**خپل ـــــ** :- (خ+پ+ل ـــ)(پ تر، اس، مو) خپل اختیاري، خپل اختیار لرنه، اختیار مندي۔

**واگښه** :- (وا+گ+ښه)(صف، مذ، مو ــ ه) گنگس، کبج، پرېشانه، مضطرب، گبراؤ شوے۔

**واگون** :- (وا+گو+ن)(انگ، اس، مذ، ج ــ ونه) (و ــــ وېگن)۔

**واگه** :-(وا+گَ)(اس، مو، ج ــ گې) هغه تسمه چې د اس قیضې سره دواړو طرف ته لگېدلې وي او سور پرې اس له اشارې ورکوي۔ زمام، لگام، مجازاً : اختیار۔

**ـــــ ماتول** :- د واگې په راښکلو، د ټانگې وغېره د اس رخ بدلول۔ خصوصاً د بلې ټانگې نه د مخکښې کېدلو دپاره د اس مخ بنې طرف ته کول چې ترې مخکښې وتے شي۔

**واگې** :-(وا+گې) د ,, واگه ،، جمع ده۔ د ,, واگه ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي۔

**ـــ پرې ور اچول** :- (و ـــ واگې ورسستول)۔

**ـــــ دلاسه وتل، دچا** :- د چا اختیار دلاسه وتل، قابو پرې نۀ پاتې کېدل، بې قابو کېدل۔

**ـــــ راښکل** :- اس ودرول۔

**دحکومت ـــ** :- (د، حُ+کو+م+ت ـــ)(عپ تر، اس، ج) دحکومت د چلولو واک اختیار، د حکومت یا د باشاهي اختیارات۔

**ـــــ (ور) سستول** :- اس په خپله رضا تللو ته پرېښودل مجازاً : د چا ځخه پابندي لرې کول، او خپلې رضا او خواهش ته پرېښودل۔

**ـــــ شلول** :- بې قابو کېدل، د قابو نه/ ځخه وتل۔

**وال** :- (وا+ل)(اس، مذ، ج ــــ ونه) کماني، کماني، د گړې وړوکې کماني۔

**وال** :-(وا+ل)(هـ، اس، مذ) وېښتۀ (عام طور سره نۀ استعمالېږي۔ یو نیم شاعر په شعر کښې راوړے دے)۔

**وال** :- (وا+ل) (لاحقه) د ,, والا ،، لنډ شکل دے۔ نورو الفاظو سره راځي او د ملکیت باشنده وغېره معنې شیندي۔ لکه : کلي وال۔

**وال** :- (وا+ل)(لاحقه) د پښتو لاحقه ده۔ اسمونو سره لگولے شي او د نسبت وغېره معنې ورکوي۔ لکه : بنېر وال۔

**بنگړي ـــ** :- (ب+ن+گ+ړي ـــ)(پ تر، اس، مذ، ج ـــ ان) هغه سړے چې بنگړي خرڅوي۔

**لیک ـــ** :- (لي+ک ـــ)(و ـــ لیکوال)، لیکونکے، ادیب نثرنگار۔

**وال** :- (اس، مذ) وېښتۀ۔

د هغـــۀ یار پکار نۀ ده د ښکلیو

چې په مخ باندې ئې وینې تور وال (خوشحال)

(هـ ـــ وال)۔

**ـــ کمانۍ** :- (ـــ ک+ما+ن+ۍ)[ک+ما+نۍ](اس، مو) د گړۍ هغه وړوکے تاؤ راتاؤ پېچ چې گړۍ په یو نیب چلوي۔

**والله** :- (وا+ل+لا+ه)(ع، جمله) په الله مې دې قسم وي۔ قسم کلمه ده۔

**ـــ اعلم** :- (ــــ (هو)+ا+ع+ل+م)(ع، جمله) خدا ے پاک د ټولو ځخه زیات باخبره دے۔ خدا ے به ترې خبر وي۔ په داسې موقع وئیلے شي چې ویونکے یا لیکونکے د خپلې وینا یا د لیک په حقله پوره یقین نۀ وي۔ ځینې وخت ,, والله اعلم بالصواب ،، هم لیکلے شي یعنې چې درسته اوصحیح خبره خدا ے تعالی ته معلومه ده)۔

**ـــ بالله** :-(ـــ ب+ل+لا+ه) قسم دے۔ په الله پاک مې دې قسم وي۔

**والا** :-(وا+لا)(ف، صف) اوچت، لوړ، عالي، لوے (عموماً نورو الفاظو سره راځي او د لوړ والي معنې شیندي)

**والا** :- (وا+لا)(ع، صف) لوړې مرتبې واله، لوړ شان واله۔

توري سترگې توري وروځې

تـــور بانـــۀ اوربدۀ، والانبۀ (خوشحال)

**والا** :- (وا+لا)(سابقه) د فارسي سابقه ده۔ نورو الفاظو نه/ځخه وړاندې لگولے شي او د لوړ والي، اوچت والي، بزرگۍ وغېره معنې شیندي۔

**والا** :- (وا+لَ/لا)(لاحقه) لاحقه ده۔ اسمونو سره لگولے شي۔ او د ملکیت یا د پت معنې شیندي۔ لکه: ټانگې والا، (دا لاحقه په اردو کښې هم مستعمله ده خو په پښتو ئې اخري الف راښکلے (اوږد) نۀ وئیلے کېږي۔ ځکه ,, والا ،، په ځا ے ,, واله ،، لیکل ئې درست دي۔ نورو الفاظ کښې د ,, واله ،، تر لاندې وگورئ۔ بخاري)۔

**ـــ شان** :- (ـــ شا+ن)(پ تر، صف) لو ے شان واله، عالي شان (دعزت لقب دے عموماً حاکمانو ته د تخاطب په موقع استعمالولے شي)۔

**ـــ مرتبت** :- (ـــ م+ر+ت+ب+ت)(عف، تر، صف) لوئې مرتبې واله، عالي مرتبت۔

**ـــ نامه** :-(ـــ نا+مَ)(ف تر، اس، مو، ج ـــ مې) لویه نامه، عزت واله چیټۍ، د دیو خلقو او د مشرانو خط ته د عزت په طور وائي۔ نوازش نامه۔

**ـــ همت** :-(ـــ هـِ+مْ+مَ+تْ)(ف تر، صف) لوړ همت واله، لوئې حوصلې واله

**والد** :- (وا+ل+د)(ع، اس، فا) زېږوونکے سړے، پلار، پدر۔

**والده** :- (وا+ل+دَ)(ع، اس، مو، ج ـ ې) مور، مادر، ابۍ۔

**والده** :- (وا+ل+دَ)(ع، اس، مو، ج ـــ دې) د ,, والد ،، تانیث دے۔ مور۔

**والدین** :- (وا+ل+دي+ن)(ع، اس، تثنیه) مور او پلار، والد او والده۔

**والدعا** :- (و+دْ+دُ+عا)(ع، جمله) او دعا دې وي۔ یا دعا دې درورسي۔ دعائیه جمله ده۔ چې عموماً وړو ته د خط په اخر کښې لیکلے شي۔

**والسلام** :- (و+سْ+سَ+لا+م)(ع، تر، جمله) او سلام دې وي۔ یا سلام دې درورسي۔ (عموماً د خطونو په اخر لیکلے شي یا د تقریر د ختمولو

په وخت وئیلے شي ـ د خبرې په ختمولو وئیلے شي ـ

**والگی** :- (وا + ل + گ + ی) (اس، مو) د بارک د ونې ریښه چې ډېره کلکه وي ـ او ځینې الات ترې سازولے شي ـ د غوږ کالے ، والی ـ

**والگے** :- (وا + ل + گے) (اس ، مذ) نزله ، زکام ـ ریزش ـ

**ــــ وهل** :- یخ وهل ، زکام کېدل ، نزله کېدل ـ

**ــــ نیول** :- زکام کېدل ، یخ وهل ، ریزش کېدل ـ

**والنتیر** :- (وا + ل + ن + تې + ي + ر) (انگ ، اس ، مذ ، ج ـ ان) د خپلې اندې کوم کار خدمت کوونکے ، رضا کار ـ

**ځان ــــ کول** :- خپل خدمت په خپله رضا د کار کولو دپاره وړاندې کول ـ ځان رضا کار کول ـ

**واله** :- (وا + لَ) (لاحقه) د ,,والا ،، بدل شکل دے ـ د ملکیت یا د پیشې وغېره معنې ورکوي ـ

**واله** :- (وا + لَ) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـ لې) د ,, بنگړي وال ،، تانیث دے ـ

**واله** :- (وا + لِ/لَ) (ع ، اس ، فا) عاشق ، مئین ، مفتون ـ (اصلاً د لام زېر سره دے ـ خو عام طور سره د لام زور سره وئیلے شي) ـ

**واله** :- (وا + لَ) (ف ، اس) فریاد ، زاري ـ

**ــــ جاه** :- (ــــ جا + ه) (ف تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) د لوئې رتبې خاوند ، لوے مقام واله (عموماً د مخاطبې په وخت یا حاکمانو ته د درخواست لیکلو په وخت استعمالولوے شي) ـ

**ــــ حضرت** :- (ــــ ح + ض + ر + ت) (عف ، تر ، اس) د عزت لقب دے ـ عموماً د بادشاه دپاره استعمالېږي ـ اعلي حضرت ـ

**ــــ حېثیت** :- (ــــ (حې + ي + ي + ت) (عف ، تر ، صف) د حېثیت خاوند ، مالدار ، دولت مند ، شته مند ـ

**ــــ قدر** :- (ــــ ق + د + ر) (عف تر ، صف ، مذ مو ـــ ه) د لوے قدر ښتن ، لوړ قدر واله (و ــــ والاجاه) ـ

**ــــ و شېدا** :- (ــــ (و) شې + دا) (عف ، تر ، صف) سخت عاشق ، مئین ، ډېر زیات مشتاق ـ

**استعداد ــــ** :- (ا + س + ت + ع + دا + د ــــ) (عپ تر ، صف) د استعداد خاوند ، قابل ، لائق ، لیاقت لرونکے ـ

**اقبال ــــ** :- (ا + ق + با + ل ــــ) (عپ ، تر ، صف) د اقبال ښتن ، خوش بخته ، خوش قسمته ، بختور ـ

**اقتدار ــــ** :- (ا + ق + ت + دا + ر ــــ) (عپ تر ، صف) د اقتدار ښتن ، د زور طاقت خاوند ، د اختیار خاوند ـ

**انصاف ــــ** :- (ا + ن + صا + ف ــــ) (عپ ، تر ، صف) د انصاف خاوند ، منصف ، منصف مزاج ، انصاف دار ـ

**تمیز ــــ** :- (ت + مي + ز ــــ) (عپ ، تر ، صف) د تمیز ښتن ، په ښهٔ او بد کښې فرق کوونکے ، تهذیب واله ، مهذب شائسته ـ

**جائیداد ــــ** :- (جا + ئي + دا + د ــــ) (عپ ، تر ، صف) د جائیداد خاوند ، د دفتر ښتن ـ زمکه ، کورونه وغېره لرونکے ، د حېثیت خاوند ـ

**دماغ ــــ** :- (د + ما + غ ــــ) (اس ، صف) د دماغ خاوند ، مغروره ، کبرجن ، هوښیار ، سوچ فکر کوونکے ـ

**ذوق ــــ** :- (ذو + ق ــــ) (اس ، صف) د ذوق خاوند ، د ښهٔ مذاق یا د طبقې خاوند ، شوقي ، شوقین ـ

**زړهٔ ــــ** :- (ز + ړ ــــ) (اس ، صف) د زړهٔ خاوند ، زړهٔ لرونکے ، زړهٔ ور ، جرات واله ، بهادر ، پرهېزگاره ، متقي ، سخي ، ورکړه کوونکے ـ

**سعادت ــــ** :- (س + عا + د + ت ــــ) (اس ، صف) سعادت لرونکے ، د سعادت ښتن ، خوش بخته ، بختور ـ

**سلیقې ــــ** :- (س + لي + قې ــــ) (اس ، صف) د سلیقې ښتن یا مېرمن ، سلیقه لرونکے ، تمیز واله ، مهذب ـ

**شان شوکت ــــ** :- (شا + ن + شو + ک + ت ــــ) (اس ، صف) د شان شوکت خاوند ، د بدلې واله ، رعب داب واله ، دبدبې واله ـ

**طاقت ــــ** :- (طا + ق + ت ــــ) (و ــــ قوت واله) ـ

**طمعې ــــ** :- (ط + مې ــــ) (عپ ، تر ، صف) طمع لرونکے ، طمعدار ، لالچي ـ

**واله** :- (و + ا + لَ) (ف ، اس) عاشق ، شېدا ، مئین ـ

**عدل ــــ** :- (ع + د + ل ــــ) (صف) د عدل ښتن ، عدل واله ، عادل ، انصاف کوونکے ، منصف ـ

**غرض ــــ** :- (غ + ر + ض ــــ) (عپ تر ، صف) د غرض خاوند ، غرضي ، غرضمند

**غېرت ــــ** :- (غې + ر + ت ــــ) (عپ تر ، صف) د غېرت خاوند ، غېرتي ، غېرتمند ، پښتون ـ

**فهم فراست ــــ** :- (ف + هـ + م + ف + را + س + ت ــــ) فهم او عقل پوهه لرونکے ، هوښیار ، عقلمند ـ

**قسمت ــــ** :- (ق + س + م + ت ــــ) (عپ تر ، صف) د ښهٔ قسمت خاوند ، خوش بخته ـ بختور ، بختي ـ

**قوت ــــ** :- (قو + و + ت ــــ) (عف ، تر ، صف) د قوت ښتن ، طاقت واله ، زور لرونکے ، زورَور ، قوتناک ـ

**کرامت ــــ** :- (ک + را + م + ت ــــ) (عپ ، تر ، صف) د کرامت ښتن ، بزرگ ، ولي الله ـ

**ــــ کول** :- اوچتول ، لوړول ، پورته کول ـ

**کور ــــ** :- (کو + ر ــــ) (اس ، صف) د کور خاوند ، کوربه ښځه ، مایله ـ د کور دننه خلق ، ښځه اونور زنانه ـ

**ــــ گوهر** :- (ــــ گو + هـ + ر) ـ

**ــــ گُهر** :- (ــــ گُ + هـ + ر) (ف ، تر ، صف) لوے خاندان واله ، عالي خاندان ـ

**مقدور ــــ** :- (م + ق + دو + ر ــــ) (عپ تر ، صف) د مقدور یعنې د قدرت ښتن ، قدرت یا طاقت لرونکے ـ شته منډ ، دولتمند ، مالدار ـ

**نسب ــــ** :- (ن + س + ب ــــ) (عپ تر ، صف) د نسب خاوند ، لوے نسب یا خاندان لرونکے ، والانسب ـ

**نصیب ــــ** :- (ن + صي + ب ــــ) (عپ ، تر ، صف) د نصیب خاوند ، قسمت واله ، بختور ، بختي ، خوش نصیبه ـ

**وقار ــــ** :- (و + قا + ر ــــ) (عف ، تر ، صف) د وقار ښتن ، وقر یا درونډوالے لرونکے ، رعب داب واله ـ

**هنر ــــ** :- (هو / هُ + ن + ر ــــ) (عپ تر ، صف) د هنر خاوند ، هنرمند ، هنر لرونکے ـ

**تر ــــ تړے پورې اېستل** :- مجازاً فریب ورکول ـ

**والهٔ** :- (وا + ل) (اس ، مو ، ج ــــ ولې) لښتے ، ندئ ، لړ بهاندې اوبهٔ چې لاز ئې قدرتي وي او که مصنوعي ، وله ـ

**والي** :- (وا + لي) (ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ان) حاکم ، بادشاه ، حکمران ، گورنر ، سرپرست ، حمایت کوونکے ـ دوست ، امداد کوونکے ، مرستیال ـ

**والي** :- (وا + لي) (ع ، اس ، فا) مالک ، حاکم ، حکمران ، بادشاه ، د سوات د زوړ ریاست د حکمران لقب ـ

**ــــ وارث** :- (ــــ وا + ر + ث) (عف ، تر ، اس ، مذ) سرپرست ، حمایت کوونکے ، مربي ، پشت پناه ـ

**والي بال** :- (وا/وو + لي + با + ل) (انگ تر ، اس ، مذ) د بال یوه لوبه ، چې بال د جال څخه په لاسونو وهلو د مخالف مېدان ته اړولے شي ـ

**والئ** :- (وا + ل + ئ)(اس ، مو ، د غوړ یو کالے ، چې د کړې په شان شکل لري.
**والے** :- (وا + لے)(اس ، ج) د ,, واله ،، جمع ده ، ولے ، ویالے.
**ـــ والے** :- (ـــوا + لے)(لاحقه) د پښتو لاحقه ده. عموماً د صفت کلماتو سره لګولے شي. چې لاس ترې جوړ کړي. لکه: ګرم +والے = ګرموالے. دغه شان تور والے، ځرنګ والے.
**وام** :- (وا+م)(اس مذ ،ج ـــ ونه) د ,, وهم ،، بدل شکل دے. (و ـــ وهم).
**وام** :- (وا + م)(فعل) د ,, وایم ،، بدل شکل.
**وام** :- (وا + م)(ف اس ، مذ) قرض ، پور.
**ـــ کول** :- پورول ، قرض اخستل.

نـــازنیني ددې دهـــــــر
فتنې ستا له سترګو وام کا (خوشحال)

**ـــ اېښودل** :- (ع،اس،مذ،ج ـــ ونه) پور کښېښودل ، قرض ګرځول.
**ـــ اخیستل** :- پورول ، قرض اخیستل.
**وام** :- (وا + م) د ,, وهم ،، بدل شکل دے. له ډېره وامه هغه غوټه ئې له لاسه ایله شوه! (بل).
**وامق** :- (وا + م + ق)(اس ، مع) د یو افسانوي عاشق نوم چې په عذرا مئین ؤ. مجازاً: عاشق ، مئین.
**وا** :- (وا) د ,, وایه ،، لنډ شکل دے. لکه: تهٔ وا .... (تهٔ به وائې چې..).
**وا** :- د ,, و ،، بدل شکل دے چې داسې مصدر سره راځئ. چې په سر کښې ئې الف وي نو دا په ,, وا ،، بدل شي. لکه: واخله.
**ـــ کول** :- لرې کول ، پرانستل ، ویرول.
**ـــ ماندګي** :- (ـــ ما + ن + د + ګي)(ف تر،اس،مو) وروستو پاتې کېدنه. ستوماني ،ستړے والے ، ستړیا.
**ـــ مانده** :- (ـــ ما + ن + دَ)(ف تر،اس ،مذ،ج ـــ ګان) وروستو پاتې شوے.
**پښې ـــ کېدل** :- پښې پرانستې کېدل ، بېړۍ د پښو نه لرې کېدل. ازادېدل.
**وان** :- (وا + ن)(لاحقه ، مذ ، ج ـــ ان) د فارسي د لاحقې ,, بان ،، بدل شکل دے. نورو اسمونو سره راځي. لکه: باغوان ، موټروان.
**وانج** :- (وا + ن + ج)(ع ، اس ، جم) مسور ، نسک.
**وانجو** :- (وا + ن + جو)(اس ، جم) سیاه دانه ، کلونجي. دا لفظ ,, د تورو انجو ،، په طور ډېر راځي. چې د ,,کال ونجي ،، بدل شکل ښکاري.
**وانځه** :- (وا + ن + (د) ز)(اس ، مو ، ج ـــ ځې) جهېز ، داج ، (مروت) ، کور.
**واند** :- (وا + ن + د)(اس ، مذ) ګمان ، قیاس ، خیال.
**ـــ زغلول** :- (و ـــ واند کول).
**ـــ کول** :- ګمان کول ، قیاس جنګول ، خیال کول.
**وانـــډه** :- (وا + ن + ډَ)(اس ، مـو ، ج ـــــ ډې) د کوچیـانو یـا د شـتـه منـو د عارضي استوګنې ځاے.
**واړل** :- وویل کول، اوړه کول ،مېده کول. لکه مېچن اوړل.

د معنا پـــــه حقیقت ئې نظر وکړه
درغستلې وېنا مکره ښهٔ ئې واړه (مرزا خان)

**واړل** :- [و+ړ+ل] اړول ، وړاندې کول ، بوتلل.
**واړه** :- [وا+ړه] غوبل شوې غله چې بوس او دانې ئې لا یو ځاے وي.
**واړـــي** :-(وا + ن + ړي)[وا+ړـــي](اس ، ج) سـپـېـنې اعصـاب ، د پښـــو د شـا اعصاب
**ـــ ټنبټېدل** :- سپېنې ټنبټېدل ، کنایه: وار خطا کېدل ، سراسیمه کېدل ، سخت ,, ګبراوېدل ،،.
**ـــ ختل** :- (و ـــ واړي ټنبټېدل).
**وانګ** :-(وا + ن + ګ)(اس مذ ،ج ـــ ونه) انار ، نرګوسے ، مشهوره مېوه.
**وانګیـره** :- (وا + ن + ګـي + ر)(فعـل) د ,, انګېـرل ،، مصدر نـه/ ځـخـه د امـر فعل ، اندازه وکړه ، ګمان وکړه.
**وانګي وانګي** :- (وا + ن + ګي +وا+ن + ګي)(صف) ټوټې ټوټې ، پاره پاره ، ټیکې ټیکې.
**ـــ کول** :- ټوټې ټوټې کول ، ټکړې ټکړې کول.
**ـــ کېدل** :- ټوټې ټوټې کېدل ، ټکړې ټکړې کېدل.
**وانمنځـه** :- (وا + ن + م + ن + (د) ز)(اس،مـو،ج ـــ ځې) داج ، جهېـز ، هغـه سامان کوم چې ناوې له د مور و پلار د کوره ورکولے شي.
**وانمود** :- (وا + ن + مو + د)(ف تر،اس) ښودنه ، ځرګندونه ، ښکاره کونه.
**وانو** :- (وا + نو) د ,, وان ،، بدل شکل دے. چې د مغیره ؤ تورو سرا راځي. لکه: د باغوانانو چم.
**وانه** :- (وا + نَ)(لاحقه ، مو ،ج ـ نې) د ,, وان ،، مؤنث دے.
**واو** :- (وا + و)(اس،مو،ج ـــ ګانې) د یو توري (حرف) نوم. (و ـــ ,, و ،،).
**ـــ مجهول** :- (ـــ (و) م + ج + هو + ل).
**مجهوله ـــ** :- (م + ج + هو + لَـــ)(عف تر،عپ تر،اس،مو) د ,, واو ،، د توري هغه قسم چې اصلاً عربي کښې نهٔ وه. د فارسۍ نه واخستې شوه. ځکه ئې پرې ,,مجهول ،، نوم کښېښود. لکه چې په ,, توري ،، یا ,,پښتو ،، کښې ده.
**ـــ معروف** :- (ـــ (و) م +ع + رو + ف).
**معروفه ـــ** :- (م + ع + رو + فَـــ)(عپ تر،اس،مو) د عربۍ اصل واو. لکه چې په ,,توبوا ،، کښې راځي. یا د پښتو په پښتون کښې.
**وا وا** :-(وا +وا)(حرف) د تعریف یا د انبساط تورے دے. (اصلاً د واه واه لنډیز شکل دے خو په پښتو کښې داسې قسم اخري ,,ه ،، یا خو نهٔ ویلې کېږي یا ډېره سپکه ادا کېږي.) شاباش ، افرین ، ډېر ښهٔ. (خج په اولني ,,وا ،، دے).
**واوا** :- (وا +وا)(صف) د ماشومانو ژبه /جبه ، ښکلې ، صفا ، ښیښه.
**ـــ کول** :- (د ماشومانو ژبه /جبه) صفا کول ، ښکلے کول ، وینځل.
**ـــ کېدل** :- (د ماشومانو ژبه /جبه) ښکلے کېدل ،صفا کېدل،وینځلے کېدل.
**واورا** :- (وا + و + را)(اس،مذ،ج ـــ ګان) د یو مردار خور مارغهٔ نوم دے.
**واورجن** :- (وا + و + ر + ج + ن)(صف ،مذ،مو ـــ ه) واورین ، واورو واله.
**واورېي** :- (وا + و +ر+ن+ ړي)[وا+و+ر+ نې](اس،مذ،ج ـــ ړي) یخدان.
**واورنے** :- (وا + و + ر + نے)(اس،مـذ،ج ـــ نـي) هغـه ځـاے چېرتـه چې واوره محفوظه کښېښودے شي. برف دان.
**واورو** :- (وا + و + رو) د ,, واورې ،، (جمع) بـدل شکل چې د مغیـره ؤ تـورو سـره راځي.
**د ـ کارخانه** :- (د ـ کا +ر+خا+نَ)(فپ ، تر،اس،مو،ج ـ نې) هغه کارخانه چې په کښې د اوبو نه/ ځخه واوره جوړولے شي.
**د ـــ (تر) لاندې کېدل** : د (وربېدونکو) واورو د لاندې ښخېدل. په واورو کښې پټېدل.
**د / له ـــ سوړ** :- (د / لـــ سو + ړ) هغه ځیز چې د واورې نه هم یخ وي. ډېر زیات یخ. مجازاً: هغه کار چې په ډېره زیاته سستۍ سره کولے شي.

پردے غم د واورو نه هم سوړ وي. (متل).

**واوره** :- (وا + و + رَ)(فعل) د ,, اورېدل ،، مصدر ځخه د امر فعل.
**ـــ او منه مه** :- (جمله) په داسې موقع وئیلې شي چې د یو ویونکي په خپله خبره پوره یقین وي خو مخاطب ئې نهٔ مني. نو دے ورته وائي چې ما درته ووې ، تهٔ واوره ، که تهٔ ئې نهٔ منې نو مه ئې منه. خو دا کار به همداسې کېږي. یا دے ځنګه چې ما ووې.

**واوره** :- (وا + و + رَ)(اس،مو،ج ــــ رې) برف ، کنګل۔ ډېر زيات يخ۔

ــــ **کېدل** :- د اوبو د واورې (برف) په شان کلکېدل ، د واورې په شان سختيدل يا چک کېدل۔ مجازاً ډېر زيات يخېدل۔

ــــ **نيول** :- د يخنۍ په وجه کوم څيز دپاسه د اوبو د نمي څخه د واورو تهه جوړېدل۔

ــــ **والے** :- (ــــ وا + لے)(پ تر،اس ،مذ) د واورې په شان کېفيت لرنه ، يخ والے۔

**واوره غرے** :- (وا + و+رَ+غ+رے)(پ تر،اس،مذ ،ج ــــ رې) د واورې پترے چې د وريځو نه/ څخه راورېږي۔ ګړه ګرے۔

**واورې** :- (وا + و + رې) د ,,واوره ،، جمع ده ۔ د ,,واوره ،،بدل شکل چې د مغيره ۀ تورو سره راځي۔

د ــــ **بت** :-(د ــــ بو + ت)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) هغه بت (د بني ادم وغېره په شان شکل) چې د واورې څخه جوړ شوے وي۔ (په واورينو ملکونو کښې خلق په ژمي کښې داسې قسم بوتان ډېر جوړوي)۔

د ــــ **غونډسکې** :- (د ــــ غُ + ن + ډ + س +کے)(پ تر،اس،مذ ،ج ــــ کي) هغه غونډ چې د واورې نه/څخه جوړ کړے شي۔په واورينو ملکونو کښې پرې هلکان لوبې کوي۔او يو بل پرې اولي۔

د ــــ **طوفان** :- (د ــــ طو + فا + ن)(فپ ،تر،اس،مذ ،ج ــــ ونه) هغه تېزه سيلۍ چې واورې هم په کښې ورېږي۔د ورېدونکو واؤرو ډک طوفان۔

ــــ **اورېدل** :-

ــــ **ورېدل** :- د وريځو نه د واورې بخرې د باران په شان زمکې ته راتلل۔

ــــ **پرېوتل** :- واورې ورېدل۔لکه : په غرونو ډېره واوره پرېوتې ده۔

ــــ **والا** :- (ــــ وا + ل)(پ تر ، اس ، مذ) واوره خرڅوونکے۔

**واورين** :- (وا + و + رې + ن)(پ تر،صف،مذ ،مو ــــ ه) واورو واله ، د واورو نه / څخه جوړ شوے۔ واورو سره تعلق لرونکے،واورو ته منسوب۔ د واورې په شان يخ ، ډېر زيات يخ۔

ــــ **ملک** :- (ــــ م + ل + ک)(پ تر،اس،مذ ،ج ــــ ونه) هغه ملک چې په ژمي په کښې واورې ورېږي۔

ــــ **غر** :- (ــــ غ + ر)(پ تر،اس،مذ ،ج ــــ ونه)هغه غر چې په ژمي / جمي کښې پرې واورې ورېږي او دا واورې پرې کالو سر يا په کال کښې زياته برخه پرتې وي۔

**واورينه** :- (وا + و + رې + نَ)(پ ، تر ، صف ، مو ، ج ــــ نې) د ,,واورين ،، تانيث دے۔

ــــ **هوا** :- (ــــ هـ + وا)(پ تر،اس ،مو)د واروپه شان يخه هوا۔ډېره زياته يخه هوا

**واول** :-(وا + ؤ + ل)(انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د يوې ژبې /جبې هغه اوازونه (حروف يا توري) چې په ادا کولو کښې ئې په خوله يا مرۍ کښې هېڅ بنديز نۀ وي واويل هم وايۀ شي۔ لکه : و۔الف او ي۔

**خج واله ــــ** :- (خ + ج + وا + لَ ــــ)(عف تر،اس ، مذ ، ج ــــ ونه) هغه واول (حرف) په لفظ کښې زور سره ادا کولے شي۔

**واويل** :- (وا + و /ؤ + ل)(انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) د علت تورے ، غږيز تورے

**واوېلا** :- (وا + وې + لا)(ف ،اس ، مو ، ج ــــ ويلې) فرياد ، ژړا/ جړا فرياد ۔

ــــ **جوړول** :- ژړا ، شور زوږ جوړول۔فرياد کول ، ورتنډير جوړول۔

ــــ **کول** :- فرياد کول ، ژړا فرياد کول ، شکايت کول۔

په ــــ **سر کول** :- په شور فرياد اخته کول ، په شور فرياد کول۔

په ــــ **غوږ باسل** :- فرياد اورېدل ، ژړا فرياد ته توجه ورکول۔

**واوېلې** :- (وا + وې + لې)(اس،مو،ج)د ,,واوېلا ،، جمع ده ۔ د ,,واوېلا ،، بدل شکل دے چې د مغيره ۀ تورو سره راځي۔

ــــ ,,**بودل** ،، :- فريادونه بودل ، جړا / ژړا انګولا بودل۔

تۀ چې هسې ښائسته ئې ګرم خو نۀ يم
کــــه مې تل درپسې هسې واوېلې وي (خوشحال)

ــــ **کول** :- (و ــــ واوېلا کول) فريادونه کول۔

**واه** :- (وا + ه)(حرف)د انبساط د خوشحالۍ تورے۔ د شاباسي تورے۔

ــــ **واه** :- (ــــ وا + (ه))(حرف) د خوشحالۍ او د انبساط تورے د شاباسي تورے ، افرين ، شاباسې شاباش ۔ ځينې وخت د طنز په طور هم وايۀ شي۔

په ناحق ئې زنځيرونه را په پښو کړل
واه واه هسې نــــوازش هسې مــــآل (خوشحال)

ــــ **واه کول** :- تعريف کول ،صفت کول ، ستائينه کول ، شاباسے ورکول ، خوشحالي څرګندول۔

**واهب** :- (وا + هـ + ب)(ع ،اس ،فا ،مذ ،ج ــــ ان) عطا کوونکے ، ورکوونکے ، وربخښونکے ، هبه کوونکے ، د الله تعالیٰ يو صفاتي نوم۔

ــــ **الحاجات** :- (ــــ (ب +ل) حا + جا + ت)(ع تر، صف)د حاجتونو پوره کوونکے ، خداے تعالیٰ۔

ــــ **العطايا**:- (ــــ (ب +ل) ع + طا + يا)(ع تر ، صف) عطيات ورکوونکے ، خداے پاک۔

**واهۀ** :-(وا + ۀ)(فعل) د ,,وهل ،، مصدر څخه د ماضي استمراري فعل دے۔

**واهۀ** :- (وا + ۀ)(حمص) وهنه ، د وهلو عمل۔

**واهمه** :- (وا)+ هـ + م)(ع ، اس ، مو ، ج ــــ مې / ات)د بني ادم هغه خاص قوت ، چې هغه پرې تصور کوي۔د کوم په ذريعه چې داسې جزئيات او باريکۍ معلومولے شي چې تعلق ئې محسوساتو سره وي۔

ــــ **پرېوتل / لوئيدل** :- وهم پېدا کېدل ، بغېر د کوم حقيقت په خيال يا تصور کښې راتلل

ــــ **کول** :- وهم کول ، بې د کوم حقيقت څخه په زړۀ کښې خيال يا تصور کول۔

**واهمې** :- (وا + ه + مې) د ,,واهمه ،، جمع ده ۔د ,,واهمه ،، بدل شکل دے چې د مغيره ۀ توروسره راځي۔

ــــ **اخيستل** :- په زړۀ کښې وهم پېدا کېدل ، وهم اخيستل۔

د ــــ **ډار/ ويره** :- (د ــــ ډا + ر / و+ي + ر)(پ تر،اس) هغه ويره چې په زړۀ کښې بې د کوم سبب يا وجهې پېدا شي۔بې بنياده ويره۔

**واهي** :-(وا + هي)(ع ، صف ، ج ــــ ات) بې هوده ، عبث ، لغو ، کمزورے ، سست ٔ اواره ، خوشے۔

**واهيات** :- فضول خبرې ، بې هوده خبرې۔

ــــ **ويل** :- فضولې خبرې کول ، بې هوده خبرې کول ، چتې ويل۔

**وايا** :-(وا + يَ)(انګ ، حرف) په لاره ، په ذريعه۔لکه : کراچۍ وا يا لاهور

ــــ **بټنډه** :- (ــــ ب + ټ + ن + ډَ)(انګ ، اس ، مع) د بټنډې په لار ، په لنډه لار (پخوا بمبۍ ته د رېل ګاډي مختلفې لارې وې۔چې په کښې دغه لار لنډه وه په لنډه طريقه امتحانونه پاس کول ، اول په يو ژبه /جبه کښې د انرز وغېره امتحان ورکول او بيا د انګريزي وغېره امتحانونه وار په وار ورول او بي اے ډګري اخيستل۔

**واياست** :- (وا+يا+س + ت)(فعل) وايئ يا ووايئ بدل شکل دے۔

**وايه** :- (وا + ئ)(اس ، ج) قول ، وېنا ، ګفت ، ګفتار۔

ــــ **کېدل** :- ويلې کېدل ، په وېنا کښې راتلل۔

**وايه** :- (وا + يَ)(اس ، مو) شرم ،حيا ۔

ــــ **کول** :- شرم کول ، حيا کول۔

ــــ **من** :-(ــــ م + ن)۔

ــــ **مند** :- (ــــ م + ن + د)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ــــ ۀ) حياناک ، شرم ناک ، شرم

واله.

**وايه** :- (وا + يَ)(فعل) د وايل يا ويل مصدر نه د امر فعل ، ووايه.

**وايه** :- (وا + يَ)(اس ، مذ ، ج ـــ يې) د كار ځيز ـ فائده من ځيز ، فائده من.

**ـــ من** :- (ـــ م + ن).

**ـــ مند** :- (ـــ م + ن + د)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) فائده مند ، د كار ، پكاريدونكې.

**ـــ وايه** :- (ـــ وا + يَ)(فعل) نور وايه ! نورې خبرې هم وكړه !(طنزاً وايۀ شي

**وائي** :- (وا + ئ)(فعل) د ,,وائي ،، لنډ شكل دے ـ د ,,ويلے شي ،، په معنٰى كښې استعمال شوے دے).

**وائي** :- (وا + ئي)(فعل) د ,,ويل ،، مصدر څخه د ,,حال ،، فعل (د غائب صيغه) په داسې موقع وئيلے شي چې څوك د بل د خولې خبره كوي ـ چې ويونكے ئې معلوم نۀ وي ـ روايت دے ، وئيلے شي ، نقل دے ـ لكه : وائي چې فلانے مړ شوے دے ـ د قصو د وئيلو په وخت وائي ـ لكه : وائي چې يو باچا وۀ...

**وائي** :- (وا+ئي)(فعل) د وايل يا ويل مصدر نه د حال (جمع مخاطب) فعل.

**وايې** :- (وا + يې)(اس ،مو) د سحر (تتـه) رڼا ، سپېده دم ـ د ماښام تتـه رڼا ـ ګانه ، رهن ، ګرو.

**وايے** :- (وا + يے) د ,,وايه ،، جمع ده ـ د ,,وايه ،، بدل شكل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**وائۀ** :-(اس ، مذ) خبره ، وينا.

**وائې** :- (وا + ئې)(فعل) محاوره : تۀ به وائې ، لنډ شكل دے يعني داسې ښكاري

**وائے** :-(وا + ئے)(حرف) د افسوس تورے دے ـ افسوس لكه : وائے زمونږ په حال

**وائے** :-(وا + ئے)(فعل) وے ، د تمنائي ماضي فعل دے كه داسے وے ، خنګ به ښۀ وے.

**وائې** :- (وا + ئې)(فعل) د ويل يا وايل مصدر نه د حال حاضر فعل ، تۀ وائې.

**وايل** :- (وا + ئ + ل)(مص)(و ـــ ويل).

**وايم** :- (وا + ي + م)(فعل) د وائل يا ويل مصدر نه د حال واحد متكلم فعل ـ زۀ وايم.

**وايو** :-(وا + يو)(فعل) د وايل يا ويل مصدر څخه د حال (جمع متكلم) فعل.

**وايوست** :- (وا + يو + س + ت)(فعل) د ,,وويست ،، بدل شكل دے.

**وائس** :-(وا + ئي + س)(انګ ، صف) نائب ، قائم مقام ، مرستيال.

**وائسرائې** :- (وا + ئي + س + را + ئې)(انګ ،اس،مذ ـــ ګان) د بادشاه نائب ، نائب السلطنت.

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب)(انګ ، پ تر ، اس ، مذ) د وائسرائې عهده ، د بادشاه د نائب عهده ، يا كار او ذمه واري.

**وائلن** :- (وا + ئي + ل + ن)(انګ ،اس،مذ ،ج ـــ ونه) د سرينديې يو مغربي قسم.

**وائپېر** :- (وا + ئي + پ + ر)(انګ ،اس،مذ ،ج ـونه) په موټر لارۍ كښې هغه اله چې د مخكينۍ شيشې نه (په باران كښې) اوبۀ لرې كوي.

**وائر** :-(وا + ئي + ر)(انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د سميو يا د بل كوم فلز نه جوړ شوے تار ، د بجلۍ تار.

**وائرس** :- (وا + ئي + ر + س)(انګ ،اس ، مذ) زهر ، وښ ـ ويروس ، هغه نۀ ښكاريدونكے جرثومه چې كوم مرضونه پيدا كوي.

**وائرنګ** :-(وا + ئي + ر + ن + ګ)(انګ ، تر ،اس ، مذ) په كور وغيره كښې د بجلۍ د تارونو لګونه.

**ـــ كول** :- په كور يا عمارت كښې د بجلۍ د تارونو لګول ، فټنګ كول.

**وائوا** :-(وا + ئي + وا)(انګ ، اس ، مذ) زباني امتحان.

**وائـل** :- (وا + ئـي + ل)(انګ ، اس ، مـذ) د ململ پـه شـان يـو قسم ډېر نـرې سپينسينه كپړه،وېل (ربښمينه هم وي).

**وبا** :- (و + با)(ع ، اس ، مو ، ج ـــ ګانې) خورېدونكے مرض ، هغه مرض چې متعدي وي او په يو اولس كښې مخې سره خور شي او خلق پرې مړۀ كېږي ـ لكه طاعون ، سيفينه.

**ـــ خورېدل** :- (و ـــ وبا راتلل).

**ـــ راتلل** :- وبائي مرض راګډېدل ، وبائي مرض په كوم اولس كښې شورو كېدل ـ تباهي راتلل ، هلاكت راتلل.

**ـــ ګډېدل** :- وبائي مرض شورو (شروع) كېدل ، مجازاً: يو خراب كار په اولس كښې عام كېدل.

**ـــ وهلے** :- (ـــ و + هـ + لے)(پ تر ،اس ، مف ، مذ ، ج ـــ لي) هغه كس يا علاقه چې وبائي مرض پرې تېر شوے وي ډېرې سختۍ څخه راوتے.

**وباسي** :- (و + با + سي)(فعل) د وباسل يا ويستل (باسل / يستل) مصدر څخه د حال (غائب) فعل.

**وبال** :- (و + با + ل)(ع ،اس ، مذ ،ج ـــ ونه) بار ، بوج ـ عذاب ، افت ، سزا ، مصيبت.

**ـــ په خپل سر اخيستل** :- مصيبت په خپل سر اخيستل ـ سخته ذمه واري قبلول ـ عذاب په سر اخيستل.

**وبال** :- ګناه ، اثم.

**ـــ كول** :- ګناه كول.

**ـــ كېدل** :- مصيبت جوړېدل ، تكليف ده ثابتېدل.

**ـــ ګر** :- (ـــ ګ + ر)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) ګناه ګار.

**ـــ ګره** :- (ـــ ګ + رَ)(پ تر ،اس ،مو، ج ـــ رې) ګناهګاره.

**وبالي** :- (و + با + لي)(پ تر ، صف) ګنا ګار.

**وبائي** :- (و + با + ئي)(عف ، تر ، صف) وبا سره تعلق لرونكے ، وبا ته منسوب ـ خورېدونكي متعدي مرضونه.

**ـــ مرض** :- (ـــ م + ر + ض)(عف ، تر ، اس مذ ، ج ـــ ونه) هغه مرض چې مهلك وي او د يو نه بل ته لګي ، متعدي مهلك مرض.

**وبره** :- (و + ب + ر)(حرف) په شان ، په رنګ ، مانند ، وش ، عموماً : رنګونو سره استعمالېږي او د مشابهت معنې ښيندي ـ لكه : شين وبره ، زير وبره.

**وبزه** :- (و + ب + زَ)(اس ، مو ، ج ـــ زې) بزه ، پيه ، اوبزې هغه نرے چينجے چې په ورېنو جامو كښې پيدا كېږي ـ او خوري ئې.

**وبله** :- (و + ب + لَ)(حرف) يو تر بله ، باهم ، يو له بله.

**ـــ اوړېدل** :- يو خوا بل خوا.

پټ په پټه وبلـــه اړوي تر صباحه
د ښۀ لفظ د ښۀ مضمون په اتصال (خوشحال)

**وبله** :- (و + ب + لَ)(اس مو ، ج ـــ لې) چاره ، علاج.

**وبله** :- (و + ب + لَ)(اس ، مو) چاره ګډا ، رقص ، نڅا.

**وبلته** :- (و + ب + ل + تَ)(حرف) وبله ، يو له بله.

**وبلول** :- (و + ب + ل + ؤ + ل)(مص) شربل ، شاربل.

**وبنه** :- (و +ب +ن)(صف) سركښه ځاروے ،وران ځاروے ،سرزوره ځناور.

**ـــ كېدل** :- سركښه كېدل ، سرزوره كېدل ، د ځاروي وغيره ورانے كول او په قابو كښې نۀ راتلل.

**وپار** :- (ؤ / وَ + پا + ر)(هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) معامله ، تجارت ، لېن دېن

په هغې لالچې مينې مبتلا شوم
چې لـــه تنـه پريكوي وپار د وچ (حميد)

د کور سامان او اسباب (هـــ بیوپار).

**ـــ کول** :- تجارت کول ، تجارتي لېن دېن کول.

**ـــ کېدل** :- د تجارت طور طریقه گرځېدل.

په پېسه هم سوگند کا چې گواه نۀ وي
ددې وخت د ســوداگرو دا وپار شــو (علي خان)

**وپاري** :- (و + پا + ري)(هـ ، اس ، مذ ، ج ـــان) سوداگر ، تجارتي لېن دېن کوونکے مجازاً : اعتباري ، درسته معامله کوونکے. (هـــ بیوپاري).

**وپره** :-(و / وو +پ+ر )(صف) اوپره ، ناپېژندګلو ، ناواقفه ، پردے اجنبي.

**وت** :- (و + ت) (اس ، مذ ، ج ـــونه) چاود ، شگاف ، درز ،فاصله ، د دوه ؤ ځیزونو په مینځ کښې لرې والے. کشادگي.

**ـــ نۀ کول** :- کش نۀ کول ، اُف نۀ کول اواز قدرې نۀ ختل ، بالکل غږ نۀ کول .
د چا د ویرې خبره د خولې څخه نۀ وتل.

**وت** :- (و + ت)(و ـــ ویت).

**وت** :- (و+ت)(فعل) د ,, وتل ،، مصدرنه دماضي فعل ووت.

**وتاړۀ** :- (و + تا + ړ)(فعل)د ,, تړل ،، مصدر نه د ماضي مطلق فعل.

**وتاوتــه** :- (و + تــا + و + تَ)(پ تــر ) د ,, تاتــه ،، بــدل شــکل چې عموماً پــه شعرونو کښې راوړے شي. دغه شان : وما وته ، وهغه وته وغېره.

**وتد** :- (و + ت + د )(ع ، اس ، مذ ، ج ـــونه / وتـاد) موږے ، مېخ (عـروض) داسې لفظ چې درې توري لري. کوتک ، ډنډه.

**وتر** :- (و + ت + ر)(اس ، مذ) وس ، قوت ، توان ، طاقت.

څوئي تۀ ډېر احتیاط کوې په ستر
همره اخلي محبت د شهرت د وتر (حمید)

**وتــر** :- (وِ + تْ + ر)(ع ، اس ، ج ـــوترونــه /اوتـار) طـاق ، (د جفت عـدد پــه مقابلــه کښــې) ـیـواځې ، یکــړ ـ د ماسوختن د نمـونځ اخرینــي درې رکعتونه.(د ځینو په نزد یو رکعت).

**ـــ کول** :- د ماسخوتن په نمونځ کښې اخیرني درې رکعتونه کول.

**د ـــ گوټ کښې کښېناستل** :- (مجازاً) ځان د کومې معاملې نه په ډډه کول.

**وتــر** :- (وَ + تَ + ر)(ع ، اس ، مـذ ، ج ـــونـه) د قایمـه الزاویـه مثلث (درې گـوټیز شـکل) کښـې د قـائمې زاوې تـه مخـامخ ضـلع ـ د څلـور گـوټیز شکل کښې د مخالفو زاویو تر مینځ نېغ خط ـ په دائره کښې هغـه نېغ خط چې محیط سره دوه ځایه جنگېږي او دائره پرې دوه ټکړې شي ـ خو چې د مرکز نه /څخه نۀ تېرېږي ـ د لیندې ژۍ (ځکه چې دا هم د دائرې د وتر په شان وي)

**وتر** :- (وَ + ت + ر)(صف) نمجن والے ـ د اوبۀ شوي پټي دومره قدرې اوچ حالت چې یوې اړولو ته سم وي. په مناسب حالت کښې.

**ـــ کېدل** :-د پټي د اوبۀ کېدلو نه وروستو دومره اوچېدل چې اړولو ته درست وي.

**وترا** :- (و + ت + را)(اس ،مو ، ج ـــ رې) فساد ، پسات.

**وتره** :- (و + ت + رَ)(صف)(و ـــ وتر).

**ـــ کېدل ، زمکه / پټے** :- د اوبۀ خور یا د باران نه وروستو د پټي دومره قـدرې اوچېدل چې په یوې د اړولو دپاره موزون وي.

**وتره** :- (وَ + تْ + رَ)(اس ، مو ، ج ـــ رې) د اوبو خولۀ ، هغه ځاے چېرته نه چې اوبۀ را روانېږي.

**وترو** :-(و + ت + رو) د ,,وتر ،، (جمع ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**وتري** :-(و + ت + ري)(اس ، مو) د کور سامان.

**وتـرې** :- (و + ت + رې) د ,, وتـره ،، جمع ده ـ د ,, وتـره ،، بـدل شـکل چـې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ ,, بودل ،،** :- په پټو کښې د یوې ورځې ,,بودل،، (په داسې وخت کښې زمیندار یا دهقان بغېر د پټو د اړولو نه بل کار نۀ کوي) مجازاً : سخت نااوزگاره ,, بودل ،،.

**د ـــ ورځې** :- (د ـــ و + ر + (د) زې)(پ تر ، اس ، ج) ډېــرې مصــروفې ورځې ، د نااوزگارتیا ورځې.

**وتړپه** :- (و + ت + ړ + پ)(فعل) د ,,ترپېدل ،، مصدر نه /څخه د امر فعل ، بې قراره شه.

**وتزن** :- (و + ت + ز + ن)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) وتونه لرونکے ، سوري یا سورو واله.

**وتزني** :- (و + ت + ز + ني)(صف ، مذ) سورے ، وتونه لرونکے ، پېوندي.
فلانکے مړ شو موږ به ئې ویر کړو وتزني جامې وکاږي خپسر په ښو جامو وجوړي. (مخزن)

**وتگے** :- (و + ت + گے)(اس،مذ ،ج ـــ گي) د ,, وت ،، تصغیر دے. وړوکے شـانتې وت ،وړوکے چـاؤد ،وړوکې دره ،نـرے تـنگے،د لـوگي د وتـو سورے

**وتـل** :- (و + ت + ل)(ص) د کـوم ځـاے نـه/ څخـه بـاهر کېـدل ، خـارج کېـدل ـ باهرتـه تلـل ،بېـرون کېـدل ـ ښکاره کېـدل، څرګندېـدل ـروانېـدل اوښکلے کېدل ، برامد کېدل.

**ـــ چا پسې** :- چاپسې متېیزه تلل.

**اخبار ـــ** :- (ا + خ + با + ر ـــ) اخبار چاپ کېدل اوخورېدل ـ لکه : د پښتـور څخه د پښتو یو اخبار ووځي.

**په دام ـــ** :- په دام کښې وتل ، په دام کښې ښتل.

**په ښکار ـــ** :- (پ + خ/ش + کا + ر ـــ) د ښکار کولو دپاره ځنگلو وغېره ته تلل

**خبره ـــ** :- (خ + ب + ر ـــ) خبره څرګندېدل ، خبره (نورو) خلقو ته رسېدل.

**د/ له ډلې / جماعته ـــ** :- (د/ل + ډ + لې + / ج +ما + ع + ت ـــ) د کومې ډلې ، جماعت وغېره څخه وېستلے کېدل.

**د / له نرخه ـــ** :- (د / ل + ن + ر + خ ـــ) له رواجه خلاف کار کول ، د قاعدې یا دستور خلاف عمل کول.
له کلیه ووځه له نرخه مه ووځه (متل).

**د/ له چاپه ـــ** :- (د/ ل + چا + پ ـــ) چاپ کېدل ، تر چاپه رسېدل.

**د / له اختیاره ـــ** :- (د/ ل +ا+خ+ت +یا+ر ـــ) د اختیـار نه بـاهر کېـدل ، پـه واک اختیار کښې نۀ پاتې کېدل.

**د/له کاره ـــ** :- (د/ ل + کا + ر ـــ) بې کاره کېدل ، د کار نۀ پاتې کېدل.

**د/له نوکرۍ نه ـــ** :- (د/ لـه + نو + ک + ر +ۍ ـــ) موقـوف کېـدل ، د نوکرۍ نـه اېستلے کېدل.

**سترگې ـــ** :- سترگې ړندېدل.

**غابښ ـــ** :- (غا + خ/ش ـــ) غابښ د اورۍ څخه را جدا کېدل .

**لاره ـــ** :- (لا+ ر ـــ)

**سرک ـــ** :- (س + ړ + ک ـــ) لار ، کوڅه وغېره د کلي ، ځنگل وغېره څخه. کوم خاص ځاے ته سمېدل. لکه : دا لار چېرته وتې ده.

**لاس ـــ** :- (لا+ س ـــ) لاس له مړونده جدا کېدل. بې دخله کېدل.

**له ښې ـــ** :- (لَ+ خي/شي ـــ).

**له ښې توښې ـــ** :- (ـــ تو + خي/ښي ـــ) له کاره وتل ، کار ته نۀ پرېښودے کېدل

**میاشت ـــ** :- (م + یا + ش + ت ـــ) میاشت تېرېدل.

**وتلے** :- (و + ت + لے)(پ تر ، اس مف ، ج ـــ لي) د ,, وتل ،، مصدر څخه د مفعول اسم دے ـوتے ، خارج شوے ـپه مقابله کښې اول راغلے ـپه

نورو باندې په څهٔ کار کښې فضیلت لرونکے ، نومیالے ۔
**(له) ماموریت څخه ـــ** :- (ل + ما + مو + ري + ي + ت ) ( ـــ د نوکرۍ څخه وتل ) ۔
**له سترګو ـــ** :- د نظره کېدل ، بدنظر لګېدل ۔
**نتیجه ـــ** :- د امتحان په حقله فېصله شائع کېدل ، انجام څرګندېدل ، انجام ته رسېدل ۔
**نوے شے / څیز ـــ** : ( ن+و+ے+ش+ے / ( ت ) سي + ز ـــ ) نوے څیز ایجاد کېدل ۔
**وتلے** :- ( و + ت + لے ) ( پ تر ، اس ، مف ، ج ـــ لي ) د نورو نـه پـه مقابلـه کښې وړاندې شوے ۔ مجازاً : د اعلیٰ درجې ، ختے ، غوره ، لکه : وتلي انګور ۔ نامتو ، نومور ۔ لکه : وتلے لیکوال ۔ باهر ، بېرون ، لکه : د شک څخه وتلے خبر ۔
**وتنه** :- ( و + ت + نَ ) ( اس ، مو ) فکر ، توجه ، پروا ۔
د دنیا په مال ئې هېڅ نۀ ده وتنه
راشـــه وګوره دا مال او دا منال (خوشحال)
**وتنه** :- ( و + ت + ن ) ( حمص ) باهر کېدنه ، خارج کېدنه ، بېرون کېدنه ، واتۀ ۔
**وتنه** :- ( و + ت + نَ ) ( اس مو ) توجه ، التفات ، پروا ۔
عاقلان چې په دنیا نـــۀ کا وتنه
د یقین په سترګو ویني ترې وتنه (خوشحال)
**وتو** :- ( و + تو ) د ،، واتۀ ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي ۔ د بېرون کېدلو ، د باهر کېدلو ، د خارج کېدلو ۔ لکه : د ګنبې نه د وتو لار
**ـــ ځاے** :- ( ـــ ( د ) زا + ے ) ۔
**ـــ ځے** :- ( ـــ ( د ) زے ) ( پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) د باهر کېدو ځاے ، د خارج کېدلو ځاے ، د باهر تللو لار ۔
**وتوځے** :- ( و + تو + ځے ) ( پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ځي ) د کوټې وغېره څخه باهر ته د وتلو لار یا ور ۔
**وتول** :- ( و + ت + ؤ + ل ) ( و ـــ ویتول ) ۔
**وتون** :- ( و + تو + ن ) ( پ تر ، اس ، مذ ) واتۀ ، وتنه ، باهرتلنه ، بېرون کېدنه ۔
**وته** :- ( و + تَ ) ( و ـــ ویته ) ۔
**وته** :- ( و + تَ ) ( فعل ) د ،، وتل ،، مصدر نه / څخه د استمراري ماضي واحد ( غایب مؤنث ) فعل ۔ لکه : هغه وته یا وتله ۔
**وتۀ** :- ( و + ت ) د ،، واتۀ ،، لنډیز شکل دے ۔
**وته** :- ( و + تَ ) ( حرف ) د ،، ته ،، په معنٰی کښې ۔ صرف په شعرونو کښې استعمالېږي ۔ لکه : وتاته = تاته وهغۀ ته = هغۀ ته ۔
**وتي** :- ( و / وي + تي ) د ،، وت ،، جمع ده ۔
**وتے** :- ( و + تے ) ( فعل ) د ،، وتل ،، مصدر نه / څخه د امکاني فعل جزو ۔ لکه : تۀ د کوره وتے شې ۔ یا د تمنائي ماضي جزو : لکه : کاش زۀ لـه دې ځایـه وتے شوے ۔
**وتے** :- ( و + تے ) ( اس ، مذ ، ج ـــ تي ) کوچه ، د کوڅې خوله ۔
**وتے** :- ( و / وُ + تے ) ( و ـــ وتلے ) ۔
**وتېدل** :- ( و + تې + د + ل ) ( و ـــ ویتېدل ) ۔
**وتېښن** :- ( و + تې + خ / ش ) ( فعل ) د ،، تېښتـل * ،، ( متروک ) مصدر څخه د ماضي مطلق فعل ، وتښتېد ۔
**وټ** :- ( و + ټ ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) نقص ، عېب ۔
مرد د مېدان دے ښځه د کټ ده
نـــۀ دا خبـــره د عشق د وَټ ده (خوشحال)
**ـــ ونښکل** :- عېب په ګوته کول ، عېب جوئي کول ، نقص په ګوته کول ، په کوم څیز کښې نقص را ایستل ۔
**وټ** :- ( و + ټ ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) لار ، واټ ۔

**وټ** :- ( و + ټ ) ( اس ، مذ ) هغه پتے چې فصل ترې تازه اخستے شوے وي ۔ وډ ۔
**وټ** :- ( و + ټ ) د ،، سټ ،، تابع معمل دے ۔ و ،، سټ وټ ،، ۔
**وټ وټ** :- ( و + ټ + و + ټ ) ( اس ) ژړا او پرله پسې اوښکې بهونه ، ورټ ورټ
**وټ کټ** :- ( و + ټ + ک + ټ ) ( هـ ، اس ، مذ ) کمے زیاتے ، کمے یا فرق ( هـ ـــ ودکټ ) ۔
**ـــ پوره کول** :- ( و ـــ وټ کټ ایستل ) ۔
**ـــ ایستل / اباسل** :- کمے پوره کول ، د نقصان تلافي کول ، حساب برابرول
**وټامن** :- ( و ټا + م + ن ) ( انګ ، اس ، جم ) کیمیائي مـواد چې د بنـي ادم خوراک پـه څیزونو کښې موجود وي ۔ دا بدن تـه قـوت ورکـوي او د ناروغتیا ګانو مقابلـه کـوي ۔ د دیـو د کماوخت پـه صـورت کښې د داروګانو په ذریعه دا کمے پوره کولے شي ۔
**وټانګے** :- ( و + ټا + ن + ګے ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ګي ) مقرر شوے ځاے ، هغه ځاے چې د خلقو د راستنېدلو دپاره مقرر شوے وي ۔ وټانګے ۔
**وټرنري هسپتال** :- ( انګ پ تر ، اس ظر ، ج ـــ ونه ) هغه هسپتال چې په کښې د ډنګرو ، حېواناتو دارو درمل کولے شي ۔
**وټک** :- ( و + ټ + ک ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) ګټه ، امدن خصوصاً هغه امدن چې دکاندار ئې د څیز په خرڅولو حاصلوي ۔
**ـــ کول** :- د څیزونو په خرڅولو قیمت وصولول ۔ ( د دوکاندار ) ګټه کول ۔
**ـــ کېدل** :- د څیزونو په خرڅولو امدن کېدل ۔
**وټکے** :- ( وُ + ټ + کے ) ( اس ، مذ ، ج ـــ کي ) هغه سورے چې په چت کښې د لوګي د وتلو دپاره جوړ شوے وي او د چت نه بره وتے وي ۔
**وټه** :- ( و + ټَ ) ( تابع مهمل ، ج ـــ وټې ) د ،، ګټه ،، تابع معمل دے ۔ د ګټه په لفظ کښې زور پیدا کوي ۔ ګټه وټه ۔
**ـــ کښېښودل** :- پـه مال کښې د نقص راښکاره کېدلو په وجه څۀ تاوان پرې مقررول ۔ کونډه ئې پرېښوه وټه ئې پرې کښېښوده ۔ ( متل ) ۔
**وټه** :- ( و + ټَ ) ( اس ، مو ، ج ـــ ټې ) کوم مال چې په منډۍ کښې خرڅ شي خو وروستو په مال کښې څۀ نقص ښکاره شي ۔ نو پـه مالک باندې ددې څۀ تاوان کښېښودے شي ۔ هغې تـه وټه وائي ۔ ( خج پـه ،، ټَ ،، باندې دے ) ۔
**ګټه ـــ** :- ( ګ + ټَ ـــ ) ( اس مو ، ج ـــ ې ـــ ې ) ګټه ، نفع ، منافع ، امدن ۔
**ګټه ـــ لرل** :- نفع لرل ، فائده حاصلول ، منافع لرل ۔
ګټه وټه هېڅ نشته موټې مالګه د ځانه اچوي ۔ ( متل ) ۔
**وټې** :- ( و + ټې ) د ،، وټه ،، جمع ده ۔
**وټے** :- ( و + ټے ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ټي ) د ولې هغه لوړه حصه چې ترې لاندې د جرندې ناوه لګولے شي ۔
**ؤټے** :- ( ؤ + ټے ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ټي / ان ) د ریښمو یا ریښمین ټوکي د ټوټو نه جوړ شوے هغه وړوکے شان ګل چې د قمیص دپاره د ډول دپاره ټک وهلے شي ۔
**وټي** :- ( و + ټي / ټے ) د ،، وټه ،، جمع ده ۔
**ـــ ټے** :- ( ـــ ټے ) ( لاحقه ) د پښتو لاحقه ده ۔ نورو الفاظو پسې لګولے شي او د وړوکوالي معني شیندي ۔ لکه : کچنوټے ، ورکوټے ۔
**ـــ ټے** :- ( ـــ ټے ) ( لاحقه ) د تصغیر لاحقه ده ۔ خصوصیات ئې دا دے چې ددې مرکب خج په ،، ټے ،، باندې وي ۔ لکه : منګوټے ۔
**وټېټاره** :- ( و + ټې + ټا + رَ ) ( اس ، مو ، ج ـــ رې ) ټټوے ، تتغ ، لکوے ۔ ( یوه مرغۍ چې تل د اوبو په غاړه ناسته وي ) ۔
**وټندویه** :- ( و + ټ + ن + دو + يَ ) د ،، وټندوے ،، تانیث دے ۔
**وټندوي** :- ( و + ټ + ن + دو + ي ) ( صف ، مذ ، مو ـــ ه ) په کفایت سره خرڅ

کوونکے ، په خرڅ کښې بچت کوونکے .

**وثن** :- (و + ث + ن) (ع ، اس ، مذ ، ج ــونه / اوثان) د کاڼي يا د بـل کوم څيـز څخه جوړ شوے بُت ، بت ، صنم .

**وثوق** :- (و + ثو + ق) (ع ، اس ، مذ) اعتماد ، يقين ، کلکوالے .

**ـــ سره ويل** :- يقين سره ويل ، اعتماد سره ويل .

**وثيقه** :- (و + ثي + قَ) (ع ، اس ، مو ، ج ــقې / وثائق) اقرارنامـه ، دستاويز ، اشټام کلکوالے ، استواري .

**ـــ نويس** :- (ــن + وي + س) (عف ، تر ، اس ، مذ ، ج ــان) هغـه سړے چې وثيقې ليکي . وثيقې يا اقرارنامې وغيره دستاويزونه ليکونکے .

**ـــ نويسي** :- (ــن + وي + سي) (عف ، تر ، اس مو) د وثيقې د ليکلو فـن ، دستاويز نويسي ، اشټام نويسي .

**ـــ دار** :- (ـــدا + ر) (عف تر ، صف ، مذ ، مو ــه) هغه سړے چې وثيقه لري . هغه سړے چا سره چې کوم ليکلے شوے دستاويز وي . دستاويز لرونکے .

**وج** :- (و + ج) (اس ، مـذ ، ج ــونـه) هغـه اوږد بـانس يـا اوږد لـرګے چـې کښتۍ پرې په مخکښې ټېل وهلے شي . واګه ، لګام .

**و ـ ج** :- (و + جي + م) د توري د دوه ؤ لقبونو والاشان او جلالت مآب مخففات دي . (دا الفاظ پـه افغانسـتان کښـې د حکومـت د طرفـه عمومـاً نائب الحکومت ته د خطاب په طور ورکولے شول) .

**وجاړ** :- (و + جا + ړ) (و ـــويجاړ) .

**ـــ والے** :- (ـــوا + لے) (و ـــويجاړ والے) .

**وجاړول** :- (و + جا + ړ + ؤ + ل) (و ـــويجاړول) .

**وجاړے** :- (و + جا + ړے) د ,, وجاړه ،، جمع ده . (و ـــويجاړه) .

**وجاړېدل** :- (و + جا + ړې + د + ل) (و ـــويجاړېدل) .

**وجاهـت** :- (و + جـا + هـ + ت) (ع ، اس ، مـذ) د شـکل او صـورت ښائسـت . عزت ، حرمت ، عهده ، مرتبه .

**وجب** :- (و + ج + ب) (ع ، اس ، مذ ، ج ــونه) لېشت ، لولېشت ، بالشت .

**وجد** :- (و + ج + د) (ع ، اس ، مذ) د بې خودۍ غوندې حالت . جذبه ، حال . (تصوف) هغـه بې خودي کومـه چې د موسيقۍ د اورېدو (سماع) په وخت طاري کېږي ، ډېره زياته خوشحالي .

**په ـــ کښې راتلـل** :- د موسيقۍ د اثر تـر لاندې ، نيمـه بې خودي طاري کېـدل . پـه مستۍ کښې راتلـل ، پـه سـماع کښـې مسـتېدل ، پـه مستۍ کښې جوتې خوړل .

**ـــ راوستل** :- نيمـه بې خودي راوسـتل . مستي راوسـتل ، د موسيقۍ يا سماع په وجد کښې کېدل .

**په ـــ کښې کول** :- (و ـــ په وجد کښې راوستل) .

**وجـدان** :- (وِ + ج + دا + ن) (ع ، اس ، مـذ) ورکـه بيـا موندنـه ، د پېژنـدولو يـا معلومولو قوت ، دريافت کونه .

**ـــ فروشه** :- (ـــ ف + رو + شَ) وجدان خرڅوونکے ، ضمير فروش ، د وجداني پوهې خلاف کار کول .

**خپل ـــ ته خجالت ابستل** :- خپـل عقـل سليم يـا د ضـمير پـوهې تـه ، سره منده کېدل

**خپل ـــ خرڅول** :- خپل ضمير خرڅو ، ضميرفروشي ، کلو .

**خپل ـــ غولول** :- خپل ضمير له دوکه ورکول .

**وجداناً** :- (و + ج + دا + نَ + نْ) (ع ، تف) د ضمير د پوهې تر لاندې ، د وجداني پوهې تر لاندې .

**وجـداني** :- (و + ج + دا + ني) (عـف ، تـر ، صـف) وجـدان سره تعلـق لـرونکے ، وجدان ته منسوب .

**ـــ مسئوليت** :- (ـــ م + س + اُو + لي + ي + ت) (عف ، تر ، اس ، مذ) ضمير تـه جواب دهي ، د ضمير محاسبه .

**وجدانيت** :- (و + ج + دا + ني + ي + ت) (ع ، اس ، مذ) د وجدان حالت .

**وجع** :- (و + ج + ع) (ع ، اس ، مذ) درد ، دړد ، خوږ .

**ـــ المفاصل** :- (ـــ (ع + ل) م + فا + ص + ل) (ع ، تر ، اس ، مذ) د جوړونو درد / دړد .

**وجل** :- (و + ج + ل) (مص) مړ کول ، قتل کول ، وژل ، قتلول .

**وجلهٔ** :- (و + ج + ل) (حمص) قتل کونه ، مړ کونه ، وجلون ، وژله وژلون .

**وجنه** :- (و + ج + ن) (و ـــ وجلهٔ) .

**وجو** :- (و + جو) د ,, وجهې ،، جمع بل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي .

**وجود** :- (و + جو + د) (ع ، اس ، مذ ، ج ــونه) جسم ، بدن هستي ، موجودګي ، شته والے .

**په / پر ـــ کښې راتلل** :- پيدا کېدل ، شته کېدل .

**ـــ موندل / ميندل** :- (و ـــ په وجود کښې راتلل) .

**پر / په ـــ راتلل** :- پيدا کېدل ، هست کېدل ، وجود موندل .

**پر ـــ راوړل** :- په وجود کښې راوستل . پيدا کول ، وجود ورکول .

**وجود** :- (و + جو + د) (ع ، اس ، مذ ، ج ــونه) جسم ، بدن .

هلاک ځکه شي رحمانه
چې ئې پاک نۀ وي وجود (رحمن بابا)

هستي ، موجودګي .

**ـــ ازغي ازغي کېدل** :-

**ـــ اغزي اغزي** :- د بدن اودۀ کېدل . ويښتۀ زيږ زيږ کېدل . ويرې اخيستل .

**ـــ لرل** :- جسم لرل ، بدن لرل ، هستي لرل .

**وجودي** :- (و + جو + دي) (عف تر ، صف) وجود سره تعلق لرونکے ، وجود تـه منسوب . وجود لرونکے ، هغه چې مخامخ موجود وي . هغه فرقه چې د خداے پاک وجود مني .

**وجوه** :- (و + جو + ه) (ع ، اس ، ج) د ,, وجه ،، جمع ده . وجهې ، سببونه .

**وجوهـات** :- (و + جـو + هـا + ت) (ع ، ج + ج) د ,, وجـود ،، جمـع او د ,, وجـه ،، جمع الجمع ده .

**وجه** :- (و + ج + (ه)) (ع ، اس ، مو ، ج ـــې / وجوه) سبب ، باعث ، مخ ، څهره ، طرف ، لورے ، طور ، طريقه ، جل .

**وجهه** :- (و + ج + هَ) (و ـــ وجه) .

**وجهي** :- (و + ج + هي) (عف ، تر ، صف) وجه (مخ ، څهره) سره تعلق لـرونکے (خج په ,, هي ،، دے) .

**وجهې** :- (و + ج + هې) (پ تر ، اس ، ج) د ,, وجه ،، جمع ده . سببونه ، باعثونه ، په وجه .

**له ـــ** :- (ل ـــ)

**له ـــ نه** :- (ل ـــ نَ) له سببه ، له کبله ، له باعثه .

**وجيـز** :- (و + جي + ز) (ع ، صف ، مذ ، مو ــ ه) لـړ ، وړوکے ، کوتاه ، لنډ ، مختصر ، خلاصه .

**وجيع** :- (و + جي + ع) (ع ، صف ، مذ ، مو ــ ه) دردناک ، خوږ واله ، دردواله .

**وجيهه** :- (و + جي + هه) (ع ، صف) ښکلي شکل صورت واله . ښکلے بدن واله ، ښائسته ، ښکلے ، عزت ، احترام واله .

**وځوکے** :- (وو (د) زو + کے) (پ تر ، اس ، مـذ ، ج ـــ کي) وړوکے وځ ، وړوکې پشتاره .

**وځے** :- (وو + (د) زے) (پ تر ، اس ، ج ـــ ځي) وړوکې پشتاره ، وځ ، غوزے

**وچ** :- (ؤ / وُ + چ) (صف ، مـذ ، مو ــ ه) اوچ ، خشـک ، (د لونـد يـا د تـر ضـد)

شنډ ، سکون لرونکے تورے ، ساکن حرف ، مانده ، ډنګر.

**ــــ اودس** :- (ـــ او + د + س) (پ تر، اس، مذ، ج ــــ ونه) تیمم ، تیبون ، چار اندام ، چار ادام.

**ــــ په وچه** :- (ـــ پ ، و + چَ) (و ـــ وچ په موچه).

**ــــ په موچه** :- (ـــ پ ، مو + چَ) (پ تر، تف) بغیر د څهٔ وجهې څخه. بغیر له څهٔ سببه. بې ګناه بې خطا.

**ــــ ډاګ** :- (ـــ ډا + ګ) (و ـــ وچه ډاګه).

**ــــ سابه** :- (ـــ سا + بَ) (پ تر، اس، جم) اوچ کړے ساګ.

**ــــ ګوګل** :- (ـــ ګو + ګ + ل) (پ تر، صف) هغه چې ګوګل ئې خالي وي. وچه سینه ، مانده.

**ــــ لوندهٔ** :- (ـــ لو + ن + د).

**ــــ لاوندهٔ** :- (ـــ لا + ؤ + ن + د) (پ تر، اس، ج) وچ څیزونه او لاونده څیزونه. هر قسم څیزونه. ښهٔ او بد ، ګناګار او بې ګناه.

**ــــ و لاندهٔ** :- ـــ (چو) لا + ن + د) (و ـــ وچ او لاوندهٔ).

**په ـــ زور** :- (پ ـــ زو + ر) (پ، تر، اس، مذ) په تش زور ، فقط په زور قوت. په خالص طاقت. لکه : په وچ زور مې ترې خپلې روپۍ وصولې کړې.

**ــــ سترګې** :- (ـــ س + ت + ر + ګې) (پ تر، صف) هغه چې په سترګو کښې ئې نم نهٔ وي بې حیا ، بې شرم.

**ــــ غاړے** :- (ـــ غا + ړے) (پ تر، صف) هغه چې مرۍ ئې وچه وي. شوم ، کنجوس ، بخیل. د خوراک هغه څیز چې د لوښې د خرابوالي په وجه بې خونده شوے وي.

**ــــ کونے** :- (ـــ کُ / کو + نے) (پ تر، صف ، ج ـــ نې) وچو کناټو واله ، مجازاً ډېر رمانده او نرے نروچکے، وچکے. (عموماً طنزاً وئیلے شي).

**ــــ کلک** :- (ـــ ک + ل + ک) (پ تر، صف، مذ) اوچ شوے او بیا کلک شوے لکه لرګے ، یا څانګه وغیره. مانده او نرے نروچکے. پوخ ، کلک ، بېخي ، بالکل. لکه : وچ کلک پښتون.

**ــــ کلک ودرېدل** :-

**ــ کلک درېدل** :- حریان دریان ودرېدل ، لاجوابه کېدل ، جواب ترې نهٔ جوړېدل . په یوه خبره ټینګېدل. اصرار کول.

**ــــ کښے** :- (ـــ ک + خے / شے) (پ تر، اس، مذ، ج ـــ ښې) پنسل ، قلم سربې (نوے لغت دے د افغانستان اختراع ده).

**ــــ کال** :- (ـــ کا + ل) (پ تر، اس، مذ، ج ـــ ونه) هغه کال چې په کښې باران نهٔ وي شوے ، بې بارانه کال.

**په ـــ مټ** :- (پ ـــ م + ټ) (و ـــ په وچ زور).

**ــــ مورے کېدل** :- د مور پېۍ وچېدل ، یو ماشوم چې لاد مور پې څښکي خو د مور ئې کېدېږه شي. ددې حمل په وجه ئې پېۍ وچ شي.

**ــــ مېږن** :- (ـــ مې + ګ / ژ + ن) (پ تر، صف، مذ، مو ـــ ه) وچېدوته نزدې ، نیم خشک.

**ــــ نهٔ خوړل، په چا** :- د چا لحاظ نهٔ کول ، د هیچا په مخ څهٔ نهٔ پرېښودل ، هر چا سره ستغ سپور چلېدل.

**ــــ والے** :- (ـــ وا + لے) (پ تر، اس، مذ) (و ـــ وچتوب).

**ــــ لینګے** :- (ـــ لي + ن + ګے) (پ تر، صف ، اس، ج ـــ ګي) هغه سړے چې لینګي (پښې) ئې وچ کلک وي یعنې غوښه پرې نهٔ وي ، هغه پښه چې وچه وي او غوښه پرې نهٔ وي.

**وچت** :- (و + چ + ت) لوړ، دنګ. (و ـــ اوچت).

**وچتول** :- (و + چ + ت + ؤ + ل) (مص) پورته کول ، لوړول. (و ـــ اوچتول).

**وچتېدل** :- (و + چ + تې + د + ل) (مص) اوچتېدل ، پورته کېدل ، لوړېدل (و ـــ اوچتېدل).

**وچړ** :- (و + چ + ړ) (صف، مذ، مو ـــ ه) بلد، اشنا ، پېژندګلو.

**وچکال** :- (و + چ + کا + ل) (پ تر، اس، مذ ، ج ـــ ونه) هغه کال چې باران په کښې نهٔ کېږي یا نهٔ وي شوے. خشک سال.

**وچکالي** :- (و + چ + کا + لي) (پ تر، اس، مو) خشک سالي ، د باران نهٔ کېدنه.

**وچکۍ** :- (و + چ + ک + ۍ) (اس، مو) میعادي تبه ، تپِ محرقه.

**وچکۍ** :- (و + چ + ک + ۍ) (اس، مو) د اوبو په مېنځ کښې لږه شان وچه زمکه ، ټاپو ، جزیره. جزیره نما.

**وچکۍ** :- (و + چ + ک + ۍ) (اس ، مو) د بې لمه ګډې یو کالیز ماده بچے.

**وچکۍ** :- (و + چ + ک + ۍ) (پ تر، اس ، مو) د ,,وچکے،، تانیث دے.

**وچکے** :-(و + چ + کے) (پ تر، اس، مذ ، ج . کي) اوچ کلک سړے ، نرے نروچکے

**وچکول** :- (و + چ + کو + ل) (اس، مذ ، ج ـــ لي) د یو کال ورغومے ، د یو کال ګډورے

**وچ ولخه** :- (و + چ + ؤ + ل + خ) (پ تر ، صف) حیران دریان ، مبهوت ، وازه خولهٔ ، اوچ مېدان ، چې په کښې هېڅ قسم ګیاه یا بوټے نهٔ وي.

**ــــ کېدل** :- سخت حېرانېدل ، مبهوت کېدل ، هک دک کېدل ، وازه خولهٔ پاتې کېدل.

**وچلے** :- وچولے ، تندے.

**وچوړکے** :- (و + چو + ړ + کے) (پ تر، صف، اس، مذ ، ج. کي) نرے نروچکے ، ډېر مانده ، ډنګر.

**وچوکي** :- (و + چو + کي) (پ تر، اس ، ج) وچ خسنې او وابښهٔ وغېره چې اور پرې بلوي.

**وچ مورے** :- (و + چ + مو + رے) (پ تر، اس، صف، ج ـــ ري) هغه ماشوم چې هغه لاد تي وي خو مور پېۍ ئې وچ شي (د بل حمل اخستلو په وجه).

**ــــ کول** :- د یو ماشوم چې لاد پیو د څښکلو وي د موریېۍ د بل حمل د اخستلو په وجه وچېدل او دغه ماشوم له پیو محرومه کول.

**ــــ کېدل** :- د پیو څښکلو په ورځو کښې د ماشوم د مور پېۍ (د بل حمل د اخستلو په وجه) وچېدل.

**وچوبه** :- (وُ + چو + بَ) (اس ، مو ، ج ـــ بې) وچه زمکه ، چې اوبهٔ نهٔ لري . باراني زمکه ، للمي زمکه. د اوبو کمے ، د اوبو تنګسیا.

**وچوبے** :- (و + چو + بے) (پ تر، اس، مذ ، ج ـــ بي) خشکابه ، للمه زمکه ، د ولې هغه اوبهٔ چې بر سر ئې د تړلو نه وروستو هم په والهٔ کښې بهېږي ، قروت، چې مبتلے شوے وي.

**ــــ وال** :- (ـــ وال) (پ تر، اس، مذ) د للمې کرونده ګرے، د للمې کرونکے. تاندوبیوال لونګې زړوي او وچوبیوال شړې زړوي (متل).

**وچوبے** :- (و + چو + بے) د ,,وچوبه،، جمع ده . د ,,وچوبه ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**وچوکے** :- (و + چوکے) (اس، مذ، ج ـــ کي) د ونې وچه شوې څانګه ، مچرکے .

**وچول** :- (و + چ + ؤ + ل) (مص) شرمنده کول ، خجل کول ، خړول.

**وچول** :-(ؤ / و + چ + ؤ + ل) (مص) د کوم څیز نه لوند والے لرې کول. خشک کول

**اودس ـــ** :- (او + د + س ـــ) د متیاز د کولو نه وروستو د الت نه لوندوالے په لُوټه وغېره وچول.

**وچولي** :- (و + چ + ؤ + لي) د ,,وچولے،، جمع ده . د ,,وچولے،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**په پراخ /پراخه** ـــ :- (پ+پ+را+خَ ــ) ـ

**په روڼ** ـــ :- (پ + رو + ڼ ــ) (پ تر ، تف) په پرانستي تندي ، په روڼ تندي ـ په خوشحالۍ او خندا سره ، په ارت زړهٔ ـ

**وچولے** :- (و + چ + و + لے) (اس،مذ،ج ــ لي) تندے ، ټنډه ، پېشاني ـ

ـــ **په پېښو مبتل** :- تندے (دچا) په پېښو کښې کښېښودل، سر په پښو کښې کښېښودل ـ

**وچونه** :- (و + چ + ؤ + نَ) (حمص) خشک کول ، نمي يا لوند والے ايستل ـ

**وچونے** :-(و + چو + نے) (پ تر ،اس،مذ،ج ــ ني) د خشکۍ مرض ، چې بدن په کښې مانده او اوچ شي ـ

**وچوونے** :- (وُ/ؤ + چ + وو+ نے) (پ تر ،اس،مذ،ج ــ ني) د وچولو څيز کپړه وغيره ، توليه ، جاذب ، نمي راښکونے څيز ـ

**وچن** :- (و + چ + ن) (اس ، مذ) شينے ، يو قسم دانه ده چې عموماً د ګوتې په سر راخيژي ـ لچ ـ د خارو د يو مرض نوم دے ـ

**وچن** :- (و + چ + ن) (صف ، مذ ، مو ــ ه) شنډ سړے ، هغه سړے چې اولاد ئې نهٔ کېږي ـ

**وچنه** :- (و + چ + نَ) (صف ، مو ، ج ــ نې) شنډه ښځه ، هغه ښځه چې بال بچ ئې نهٔ کېږي ـ

**وچه** :-(و + چَ) (صف ، مو ، ج ــ چې) هغه غوا وغيره چې پئ نهٔ کوي ـ شنډه ښځه ـ

**وچه** :- (وُ/ؤ + چَ) (صف ، اس ، مو ، ج ــ چې) د ,,وچ ،، (صف) مؤنث دے ـ وچه زمکه ، خشکه زمکه ـ

ـــ **او سيند** :- (ـــ او + سي + ن + د) (پ تر ،اس،مذ) وچه زمکه او اوبهٔ ـ د زمکې خشکي او تري ـ

ـــ **خولهٔ کښېنستل** :- بغير د کوم څيز د خوړلو کښېناستل، بغير د خول بد غوړولو پاتې کېدل ، لکه : مېلمه راغے خو وچه خوله لاړ ـ

ـــ **ډاګه** :- (ــ ډا + ګَ) (پ تر ،اس ،مو،ج ــ ې ــ ګې) هغه مېدان چې په کښې ګيا يا بوټي وغيره نهٔ وي ـ

ـــ **ډوډۍ** :- (ـــ ډو + ډ + ی) (پ تر ،اس،مو) هغه ډوډۍ چې خشکه شوې وي ـ وچه شوې ډوډۍ ـ هغه ډوډۍ چې ورسره نګولے نهٔ وي ـ

ـــ **غاړه** :- (ـــ غا + ړ) (و ــ مرۍ) بې سازه سندرې وئيل ـ د شپېلۍ د غږولو يو انداز

ـــ **غوښه** :- (ـــ غ + و + خ/ش) (پ تر ،اس،مو،ج ــ ې ــ ې) هغه غوښه چې وچه کړے شوې وي ـ

ـــ **مرۍ** :- (ـــ م + ر + ی) (پ تر ،اس،مو) وچه غاړه ، هغه نالۍ په کوم چې د ساه اخستلو په وخت هوا پړپوس ته ئې او را ووځي ـ

ـــ **مېوه** :- (ـــ مې + وَ) (پ تر ،اس ، مو ، ج ــ ې ــ ې) هغه مېوه چې اوبهٔ يا نمي نهٔ لري ـ لکه بادام کشمش يا هغه لوند ه مېوه چې وچه کړے شوې وي ـ

ـــ **وچوبه** :- (ـــ و /ؤ + چو + بَ) (و ــ وچه وچوبے) ـ

**وچوبه** :- (و + چو + ب) (اس ،مو،ج ــ بې) هغه زمکه چې اوبهٔ ئې نهٔ وي يا ډېرې کمې وي ـ کرغه ، خشکابه ـ

**وچوبي** :- (و + چو + بي) (پ تر ،اس،مو) خشک سالي ، هغه کال چې په کښې باران ونهٔ شي ـ يا ډېر کم وشي ـ خشکالي ـ

ـــ **وچوبے** :- (ـــ و + چو + بے) (پ تر ،اس،مذ،ج ــ بي) سخته خشک سالي ، خشکابه ، وچه وچوبه ـ

ـــ **خولهٔ** :- (ـــ خ + ل) (پ تر ،صف،مو) ولږے ، ګرسنه ـ

ـــ **او لنده** :- (ـــ او + لُ + ن + دَ) (پ تر ،اس،مو) و ــ وچه لاڼونده ـ د قرعه اندازۍ (پچه اچولو) يو طريقه چې اوچ او لوند ټيکر وغيره سره کولے شي

ـــ **کلکه** :- (ـــ ک + ل + کَ) (پ تر ،صف،مو،ج ــ ې ــ ې) د ,,وچ کلک ،، تانيث دے ـ

**وچې** :- (ؤ + چې) د ,,وچه ،، جمع ده ـ د ,,وچه ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ

ـــ **خبرې** :- (ـــ خ + ب + رې) (پ تر ،اس،ج) تشې خبرې ، داسې خبرې چې عمل ورسره نهٔ وي ـ سپورې خبرې ، ستغې خبرې ، د غصې خبرې ـ

**د** ـــ :- (د ـــ) بې د څهٔ بنياده ـ بغير د کوم جائيداده يا زمکې ـ

**د ــ خان** :- (د ــ خا + ن) ـ

**د ــ نواب** :- (د ــ ن + وا + ب) (پ تر ،اس،ج ، ـــ ان) هغه سړے چې زمکه يا جائيداد نهٔ لري خو د خانانو يا د نوابانو په شان نمائش کوي ـ

ـــ **سترګې** :- (ـــ س + ت + ر + ګې) (پ تر ،اس،مو،ج) مجازاً بې حيا سترګې ، بې شرمه سترګې ـ

ـــ **شونډې** :- (ـــ شو + ن + ډې) (پ تر ،اس،مو،ج) وچې شوې شونډې ، بې خوراکه ، وږے ـ ناکاميابه ، بغير د مقصد د حاصلونې ـ

ـــ **کانګې کول** :- وچې قې کول، وچې باقي ورتلل ـ داسې باقۍ چې د ګېډې نه څهٔ څيز په کښې باهر ته نهٔ راووځي ـ

**وچېږن** :- (و + چ + پې + ز + ن) ـ

**وچمبزن** :- (ـــ مي ـــ) (و ـــ وچېڅن) ـ

**وچيڅن** :- (و + چې + (د) ز + ن) (پ تر ،صف،مذ ،مو ـــ ه) نيم وچ شوے ، وچ څيز چې لا لوندوالے هم لري ـ وچېږن ـ

**وچېدل** :-(و + چې + د + ل) (مص) نمي نهٔ پاتې کېدل ، خشک کېدل ـ د يو عضو مانده او بې غوښې کېدل د غوا مېښې وغيره څاروي کښې پئ نهٔ پاتې کېدل ـ

**وچېدنه** :- (و + چې + د + نَ) (حمص) نمي نهٔ پاتې کېدنه ، خشک کېدنه ، غوا مېښه وغيره څاروي کښې پئ نهٔ پاتې کېدنه ـ د کوم عضو مانده او بې غوښې کېدنه ـ

**وڅکه** :- (وُ + (ت)س + کَ) (فعل) د ,, څکل ،، مصدر نه د امر فعل ، نوش کړه ـ

**وڅکه** :- (وُ + (ت) س + کَ) (اس،مو،ج ــ کې) مويز ، مېوه ، وچ کړے انګور ـ

**وڅکې** :- (و + (ت) س + کې) (فعل) د ,, څکل ،، مصدر نه د ماضي نه ئې يا شرطي فعل ـ لکه : که تهٔ ددې شربت خوند وڅکې ـ

**وڅکې** :- (و + (ت) س + کې) (اس،مو،ج) د ,,وڅکه ،، جمع ده ـ د ,,وڅکه ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ

**وڅکې** :- (و + ت) س + کې) (فعل) د ,, څکل ،، مصدر نه د ماضي تمنائي فعل دے ـ که تهٔ چيلم وڅکې ـ

**وڅکيځ** :- (و + (ت) س + کې + (د) ز) (پ تر ،صف،مذ ،ج ـــ ه) وڅکو سره تعلق لرونکے ، وڅکو ته منسوب ، کشمشي ـ

**وڅکېز** :- (و + (ت) س + کې + ز) (اس ، مذ ، ج ــ ونه) د تمبو يا د کږدۍ ستن ، څکېز ، سرام ، کمچه ـ

**وحداني** :- (و + ح + دا + ني) (ع،تر،صف) واحد (يعني يو) سره تعلق لرونکے يو ته منسوب ـ

**وحدانيت** :- (و + ح + دا + ني + ي + ت) (ع ، اس ، مذ) يو والے ، واحدي ، يکتائي ، توحيد ، يګانګي ـ

**وحدت** :- (و + ح + د + ت) (ع ، اس ، مذ) يو کېدنه يا ,,بودنه ،، ، توحيد ، يووالے ، يکتائي ، يګانګي ـ د نارينه ؤ په نومونو کښې راځي ـ

**ــــ الوجود** :- (ــ(ت+ل) و + جو + د)(ع،تر،اس،مذ) د وجود یعني د هستۍ یو والی. د صوفیانو عقیده. چې ټول شیزونه او خدای پاک یو وجود ګڼي او دديٰ وجود نه ما سېوا په څهٔ محض اعتباري ګڼي. یعني هر وجود د خدای پاک وجود دی.

**ملي ــــ** :- (م + ل + لي ــــ)(عف ،تر،اس ،مذ) د ټول ملت یا د قوم یو والی. د ملت یا د قوم اتفاق او یو موټی کېدنه.

**دفکر** :- (د ،ف /في + ک + ر ــــ)(عف تر ،اس،مذ) د ټولو خلقو یا د غړو د خیالاتو یو شان والی ، هم خیالي.

**ــــ نوعي** :- (ــ(ت) نو + عي)(عف تر ،مذ) د یو نوع سره متعلق کېدلو په وجه یو والی ، هغه یو والی کوم چې د کومو شیزونو د یو نوع له کبله وي.

**وحش** :- (و + ح + ش)(ع ،اس،مذ ،ج ــ ان / وحوش) ځنګلي ځناور ، وحشي ځناور. هغه ځناور چې بني ادمانو سره نهٔ مانوس کېږي.

**وحشانو** :-(و + ح + شا + نو) د ,,وحشان،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**د ــــ باغ** :- (د ــ با + غ)(پ تر ،اس،مذ ،ج ــ ونه) هغه باغ چې په کښې ځنګلي ځناور ساتلی شي. چړیا ګر.

**وحشت** :- (و + ح + ش + ت)(ع ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) اوپره والی، غېر مانوسیت ، ویره کونه ، ویره ډره . جنون ، لېونتوب ، ګبرواېدنه ، اضطراب.

**ــــ خوړل** :- ویره کول ، ترهه کول.

**ــــ زده** :- (ــ ز + ده)(ف تر ،صف) وحشت وهلی ، ویرېدلی ، ویرې اخستی ، مضطرب ، ګبراؤ شوی.

**ــــ کول** :- اوپره والی کول ، ویره کول.

**ــــ کېدل** :- اوپره والی محسوسول ، ویره محسوسول. ویره کېدل.

**ــــ ناک** :- (ــــ نا + ک)(عف،تر،اس،مذ ،مو ــ ه) ویروونکی ، خوف ناک ، ډره پېدا کوونکی.

**وحشه** :- (و + ح + شَ)(و ــــ وحش).

**وحشي** :- (و + ح + شي)(عف،صف،اس،ج ــ ان/وحوش) ځنګلي ، هغه ځناور وغېره چې بني ادمو سره نهٔ عادتېږي.

دین ئې دام وي د دنیا په لارکښې اېښې
پــــرې را اړوي وحشیان د مخلوقــــات (رحمان بابا)

مجازاً صحرائي ، ځنګلي ، غېر مهذبه ، بې تهذیبه. ظالم ، ناترسه.

**ــــ طبع** :- (ــــ ط + ب + ع).

**ــــ مزاجه** :- (ــــ م + زا + ج)(عف تر ،صف) هغه چې خوي خصلت ئې د ځنګلیانو وي . د خلقو نه لرې اوسېدونکی . اولس سره ګډون نهٔ کوونکی.

**ــــ قومونه** :- (ــــ قو + مو + نَ).

**ــــ قبیلې** :- (ــــ ق + بي + لې)(عپ ، تر ، اس ،ج) هغه قومونه یا قبیلې چې په ځنګلونو دشتونو کښې د نورو قومونو نه جدا او لرې اوسي . غېر مهذب قومونه

**وحشیانه** :- (و + ح + ش + یا + نَ)(عف ، تر ، تف) د وحشیانو په شان ، د ځنګلیانو په شان ، په غېر مهذبه طریقه ، ظالمانه ، په ناترسه ډول.

**ــــ سلوک** :-(ــــ س + لو + ک)(ف تر ،اس،مذ) د ځنګلي خلقو په شان سلوک ، د غېر مهذبو خلقو په شان سلوک ، ظالمانه سلوک ، سخت سلوک ،ظلم ، بې رحمي.

**وحوش** :- (و + حو + ش)(ع ، اس ، ج) د ,,وحش،، جمع ده . ځنګلي ځناور ، هغه ځناوران کوم چې بني ادمانو سره نهٔ عادتېږي.

**وحشیت** :- (و + ح + شــي + ي + ت)(ع ، تــر ، اس ، مــذ) وحشــي تــوب ، ځنګلي توب، ځناور توب ، ظلم ، زیاتی.

**ــــ انګېز** :- (ــــ ا + ن + ګې + ز)(و ــــ وحشت ناک).

**وحي** :- (و + حي)(ع ، اس ، مو ، ج ــ ګانې) هغه پېغام چې د خدای پاک د طرفه د هغهٔ پېغمبر ته را استولی کېږي. خدائي پېغام. قرآن پاک ، اسماني یا خدائي کتاب یا صحیفه.

**ــــ کېدل** :- د وحي په ذریعه د الله پاک د طرفه پېغام راتلل. (طنزاً) د غېبو علم لرل. لکه : په تا چې څهٔ وحي خو نهٔ ده شوې چې داسې به کېږي.

**ــــ راتلل** :- د خدای پاک د طرفه د هغهٔ پېغمبر ته پېغام را رسېدل.

**ــــ نازلېدل** :- (و ــ وحي راتلل یا کېدل).

**وحید** :- (و + حي + د)(ع ، صف ، مذ ، مو ــ ه) بې مثاله ، بې مثله ، هغه چې د چا په شان بل څوک نهٔ وي. د خدای پاک یو صفاتي نوم. د نارینهٔ په نومونو کښې راځي.

**ــــ العصر** :- (ــ(د+ل) ع + ص + ر).

**ــــ الدهر** :- (ــ(دُ+د) د + هـ + ر)(ع تر، صف) هغه چې په درسته زمانه کښې سارې نهٔ لري. د زمانې یکتا وګړی.

**وخ** :- (و + خ)(حرف) د خوشحالۍ او د انبساط توری چې د خوشحالۍ په وخت د خولې نه ووځي. د تعجب توری.

**ــــ وخ** :- (ــــ و + خ)(حرف) د انبساط او د شاباسي توری دی . واه واه ، افرین

**ــــ کول** :- خوشحالي ښکندول ، د خوښي اظهار کول . شاباسی ورکول ، شاباس ، افرین وئیل.

**وخامت** :- (و + خا + م+ت)(ع ، اس ، مذ) بد حالي ، بد حالت ، د انجام بد والی ، د انجام سخت والی.

**وخت** :- (و + خ + ت)(اس ، مذ ، ج ــــ ونه) وقت ، زمانه ، روزګار ، دور.

**ــــ بې وخته** :- د ضرورت په وخت.

**ــــ رارسېدل** :- د مرګ نېټه پوره کېدل ، مرګی راتلل ، مناسب وخت راتلل ، موسم راتلل.

**په ــــ** :- (پ ــــ)(پ تر ،تف) په ټیک وخت ، په مقرره وخت.

**ــــ راتلل** :- موسم راتلل ، مناسب وخت راتلل.

**بد ــــ** :- (ب + د ــــ)(پ تر ،اس،ظر ،ج ــ ونه) خراب وخت ، نامساعد وخت ، د سختۍ ورځې ، د تکلیف ورځې.

**ښهٔ ــــ** :- (خ / ش ــــ)(پ تر ،اس،ظر ،ج ــ ونه) موافق وخت ، مساعد وخت ، د خوشحالۍ او کامیابۍ وخت ، د ښته منۍ زمانه.

**د ــــ پابند** :- (د ــ پا + ب + ن + د)(پ تر ،صف،مذ ،مو ــ ه) هغه سړی چې هر کار په ټیک مقرره وخت کوي. د مقرره وخت نه وړاندې یا وروستو کېږي نه.

**د ــــ خبره** :- د بېل بېل وخت سره مناسبه خبره. د بېل بېل وخت بېل بېل شان حال.

**ــــ د ګوتو اېستل** :- موقع د لاسه ورکول ، د وخت یا موقعې نه فائده نهٔ اخیستل

**ــــ غنیمت ګڼل** :- د وخت قدر کول او فائدې ترې پورته کول او بې کاره نهٔ ضائع کول ، د موقعې نه فائده اخیستل.

**ــــ ورکول** :- د ملاقات وغېره دپاره وخت مقررول ، د ملاقات دپاره یا د بل کوم کار دپاره خپل وخت صرف کول.

**ــــ کتل** :- په ګړۍ کښې د وخت معلومول چې څو بجې دي.

**ــــ برابرول** :- د ګړۍ وخت درستول.

**ــ تېرېدل** :- ورځې شپې تېرېدل ،عمر تېرېدل ، موقع د لاسه وتل.

**ـــ تنګ ,, بودل ،،** :- ډېر لږ فرصت ,,بودل،، ، په کوم کار کښې ډېر لږ وخت پاتې کېدل.

**ـــ غوښتل** :- د کوم لوی سړي نه د ملاقات دپاره وخت مقررول. مهلت غوښتل.د مقرره وخت نه د زيات وخت تقاضا کول.په کوم کار وخت لګېدل. لکه : دا کار ډېر وخت غواړي.

**ـــ اخيستل** :- د کوم کار په کولو کښې وخت لګېدل.

**ـــ لګول** :- په کوم کار کښې وخت صرف کول، وخت ورکول ، په کار کښې ډيل کول ، په کار کښې د ضرورت نه زيات وخت تېرول.

**ــ تېرېدل** :- عمر تېرېدل ، ورځې شپې تېرېدل ، موقع د لاسه وتل.

**ـــ په وخت** :- (ـــ پ + و + خ + ت)(پ تر ،اس،ظر) په مناسب وختونو ، کله کله، کله نا کله.

**ـــ مقررول** :-

**ـــ ټاکل** :- د کوم کار يا د ملاقات دپاره چا سره خاص وخت متعين کول.

**ناسازه ـــ** :- (نا + سا + ز ـــ)(پ تر ،اس،ظر ،ج ـــ ونه) ناموافقه وخت ، نامساعد وخت.

**نازک ـــ** :- (نا + ز +ک ـــ)(ف پ تر ،اس،ظر ،ج ـــ ونه) داسې وخت چې په کښې په کوم کار کښې ډېر زيات احتياط پکار وي .د کومې لوی او اهمې فيصلې وخت.

**ـــ ابستل** :- د خپل مصروف وخت نه د کوم کار دپاره وخت بچ کول.

**ـــ وتل** :- وخت تېرېدل ، وخت دلاسه وتل.

**د ـــ وخت خبره**:- (د ـــ و + خ+ ت+ خ+ب+ ر)(پ تر ،اس،مو) د بېل بېل وخت بېل بېل شان خبره . مجازاً: حالات يو شان نۀ پاتې کېږي ، لکه : کله يو شان وي کله بل شان.کله ښۀ وي کله ناسازګاره.

**ـــ د لاسه وتل** :-

**ـــ د ګوتو وتل** :- موقع دلاسه وتل ، موزونه موقع د فائده اخيستلو نه بغېر تېرېدل

**ـــ نۀ ملاوېدل** :- فرصت نۀ ملاوېدل ، مهلت نۀ ملاوېدل .ډېر زيات مصروف بودل.

**ـــ ځې که راځي ؟** :- (جمله) بل ته د تادۍ کولو د وېنا په طور وئيلے شي.چې وخت خو تېرېږي په بېرته نۀ راځي.په کار کې تادي وکړه.

**ـــ له ګسه ورکول** :- وخت ديکه کول ، وخت تېرول ، وخت اړول ، وخت تېرے کول .

**د ـــ مرز** :- (د ـــ م + ړ + ز)(پ تر ،اس،مذ ،ج ـــ ان)د فصل مرز ،مجازاً : مطلبي دوست.

**اوسنے ـــ**:-(او + س + نے ـــ)(پ تر ،اس،ظر) روان وخت ، نن صبا ، موجود زمانه

**پخوانے ـــ** :- (پ + خ + وا + نے ـــ).

زوړ ـــ :- (زو + ړ ـــ)(پ تر ،اس،ظر) تېر شوے وخت ، تېره زمانه ، پخوانۍ زمانه.

**د ـــ** :- (د ـــ)(پ تر ،اس،ظر) د کوم څيز خاص وخت يا زمانه لکه : د کر کروندې وخت.

**دډبرې ـــ**:-(د + ډ + ب + رې ـــ)(پ تر ،اس،ظر) د کاڼو زمانه ، هغه پخوانۍ زمانه چې بني ادم به زيات تره د کاڼو نه جوړ شوي اوزارونو څخه کار اخيستۀ.

**داوسپنې ـــ**:-(د ،او + س + پ + نې ـــ)(پ تر ،اس،ظر) د اوسپنې زمانه ، هغه پخوانۍ زمانه چې په کښې بني ادم د اوسپنې نه اوزار جوړول زده کړي وو.

**ـــ په وخت** :- (ـــ پ + و + خ + ت)(پ تر ، اس ، ظر) ځينې ځينې وخت ، بعض اوقات ، موقع په موقع.په مقرر شوي وختونو کښې.

**هر ـــ** :- (هـ + ر ـــ)(پ تر ، اس ، ظر) مدام ، همېشه ، شامدام ، تل.

**وخت دے** :- (جمله) محاوره ده .موقع ده ، د څۀ کار کولو دپاره صحيح وخت يا مهلت دے.

**وختو** :-(و + خ + تو)(و ـــ وختونو).

**وختونو**:- (و + خ + تو + نو) د ,,وختونه ،، بدل شکل چې د مغيرۀ تورو سره راځي

**وختونه** :- (و + خ + تو + نَ) د ,,وخت ،، جمع ده.اوقات ، زمانې دورونه.

**په پخوني ـــ کښې** :- په پخوانۍ زمانه کښې.

**وخته** :- (و + خ + تَ) د وخت بدل شکل چې ځينو مغيره ؤ تورو وغېره سره راځي. لکه : د وخته ، ناوخته.

**د ـــ** :- (د ـــ)(پ تر ، اس ، ظر) وختي ، د عام يا مقرره وخت نه اګاهو.

**وختۀ** :-(و + خ + ت)(اس ،ظر) ختيځ ، مشرق ،نمر خاتۀ ، (د ,,ختل ،، مصدر څخه جوړ شوے دے).

**وخ خې** :- (و+خ+خې)(کلمه) د خوشحالۍ او انبساط کلمه ده .

**وختر** :-(و + خ + ت + ر)(پ تر ، اس) وخت تېرونه ، د وخت ضرورت پوره کونه ، سات تېري ، لکه : د يو څو ژاولې د وختر دپاره درلودے.

**وختې** :- (و+خ+تې)(اس،ظر) وختونه ، زمانه ،لکه : ستاسو وختې ښې وې.

**وختي** :- و + خ + تي)(پ تر ، اس ، ظر) د مقرره يا عام وخت نه اګاهو. د وخت نه وړاندې ، د وخته.

**سحر ـــ** :- (س + ح + ر ـــ)(پ تر ،اس،ظر) د عام سحر نه اګاهو ، د سحر اولنے وخت

**وختيز** :- (و + خ + تي + ز)(پ تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) وخت سره تعلق لرونکے ، وخت ته منسوب ، وقتي ، موسمي. پخوانے ، ديرينه ، زوړ.

**وختينۍ** :- (و + خ + تي + ن + ئ)(پ تر ،اس،صف،مو) د ,,وختينے ،، تانيث دے.

**وختينے** :- (و + خ + تي +نے)(پ تر ،صف،اس،مذ ،ج ـــ ني) پخوانے ،د تېر وخت، سابق ، اولنے د اولني وختيا د وختونو.

**وختيه** :- (و + خ + تي + ي)(پ تر ،اس،ظر) د وختي بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي. لکه : فلانے وختيه راسې په انتظار کښې ناست دے.

**وخل** :- (و + خ + ل)(اس ، مذ) لهه ، ختېه.

**وخم** :- (و + خ + م)(ع ،اس،مذ) بد ، ضرري ، ناسازګار ، ناموافق درونډ ، سنګين.

**وخم** :- (و + خ + م)(اس ،مذ ،ج ـــ ونه) وقف ، سېرې.

**وخيم** :-(و + خي + م)(ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) وخم واله ، سنګين ، نازک ، خطرناک ، ناسازګار ، غېر موافق.لکه : حالات ډېر وخيم شوي دي.

**ود** :- (وُ + د) په دې کښې ,,د ،، د واحد حاضر ضمير دے .چې هغه فعلو سره راځي کوم چې د ,,و ،، نه شورو کېږي.لکه ؤ دليد ، ود ويشتم.

**ود** :- (و + د)(اس ، مذ) هوا ، باد .

**ـــ وړے** :- (ـــ و + ړے)(پ تر ،صف،مذ ،ج ـــ ړي) باد وړے.

ما وئيل چې زړۀ به نۀ ورکوم چــاته
ولې څۀ کړم چې بد زړۀ لرم ود وړے (خوشحال)

**وداد** :- (و + دا + د)(ع ، اس ، مذ) مينه ، محبت.

**وادرېدل** :- (و + دا + رې + د + ل)(و ـــ ودرېدل).

**وداع** :- (و/وَ + دا + ع)(ع ، اس ، مذ) رخصتونه ، رخصت ، مخه ښه وئينه ، د ناوې رخصتونه ، د ,,ناوې ،، د مور او پلار له کوره روانېدنه . جدا کېدنه، بېلېدنه ، جدائي.

**ـــ کول** :- رخصتول ، په مخه ښه وئيل. د ناوې رخصتول.

**ـــ کول** :- جدا کېدل ، رخصتېدل.

**ـــــويل** :- رخصت وئيل ، الوداع وئيل ـ روانېدل ،لکه : دنيا تـه ئې وداع ووے ـ

**ال** ـــ :- ( ا + ل ـــ ) ( حرف ) د رخصت کلمه ده ـ د رخصتېدو په وخت وئيلے شي ـ په خدا ے سپارلے ،خداحافظ ـ

**وداعي** :- ( و + دا + عي ) ( عف تر ، صف ) وداع سره تعلق لرونکے ، وداع تـه منسوب ـ هغه خبرې يا کلام کوم چې د رخصتېدو په وخت وئيلے شي ـ لکه : وداعي سندره ـ

**ـــــوينا** :- ( ـــــوي + نا ) ( عپ ،تر ،اس ،مو ،ج ـــ ګاني ) هغه تقرير يا خبرې کومې چې تلونکے د تللو په وخت وروستو پاتې کېدونکو ته کوي ـ وداعي تقرير

**ـــــ تقرير** :- ( ـــ ت + ق +ري + ر ) ( عف ،تر ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه ) ( و ـــــ وداعي وينا )

**ودان** :- ( و + دا + ن ) ( صف ، مذ ،مو ـــ ه ) اباد ، ابادي واله ، چې خلق په کښې اوسي ـ ښته من ، خوشحاله ، دولتمند ـ

**ـــــ اوسې** :- ( جمله ) دعائيه جمله ده ـ اباد اوسې ، ښېرازه اوسې ـ

**ـــــ شې** :- ( ـــــ شې ) ( و ـــــ ودان اوسې ) ـ

**کور دې ـــــ شه** :- ( جمله ) دعائيه جمله ده ـ کور دې اباد شه ، ښځه دې نصيب شه وادۀ وکړې ـ اباد شې ، ښېرازه شې ـ

**ودانښت** :- ( و + دا + ن + خ /ش + ت ) ( حمص ) ودانے ، ابادي ـ

**ودانول** :- ( وا + دا ن + ؤ + ل ) ( مص ) ابادول ، ابادے کول ، تعمير کول ( په کوم ځاے کښې ) استوګنه نيول ـ زمکه ابادؤل ، زمکه د کرکروندې جوګه ګرځول ـ

**کور ـــــ** :- ( کو + ر ـــ ) کور ابادول ، د کور ( خانه ) تعمير کول ـ وادۀ کول ، کور ته ښځه راوستل ـ

**ودانونکے** :- ( و +دا+ن +وو+ن+کے ) ( پ تر ،اس ،فا ،ج ـــ کي ) تعمير کوونکے ، ښېرازه کوونکے ـ

**ودانه** :- ( و + دا + نَ ) ( اس ،مو ،ج ـــ نې ) د ,, ودان ،، تانيث دے ـ

**ـــــ ده** :- ( جمله ) اباده ده ـ ابادي لري ـ مجازاً : هر څۀ شته ( څۀ ورانه خو نۀ ده چې په کښې څۀ نۀ موندے کېږي ) ـ

**ـــــ وداني** :- ( ـــــ و + دا + ني ) ( پ تر ، اس ، مو ) اباده ابادي ، داسې ځاے چې خلق په کښې اباد وي او ښېرازه وي ـ

**کور ـــــ** :- ( کو + ر ـــــ ) ( پ تر ،اس ،مو ،ج ـــــ نې ) کور ابادوونکے ، مجازاً : ښځه ، تيِر ، ماندينه ـ

**ودانے** :- ( و + دا + نے ) ( پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ لي ) ابادے ، تعمير شوے ځاے ، عمارت ، هغه ځاے چې په کښې خلق اباد وي ـ

**ـــــ کول** :- تعمير کول ، عمارت جوړول ، ابادے کول ـ

**ـــــ ويجاړے** :- ( ـــــ وي + جا + ړے ) ( پ تر ،اس ،ج ) ابادي او شړې ، ابادي او خرابے ، هر رنګه حالات ، هر رنګه ملکونه ـ

**ودانيتے** :- ( و + دا + ني + تے ) ( پ تر ،اس ،فا ،ج ـــ تي ) د ودانۍ اخلاق لرونکے ، متمدن ښاروال ـ

**ودانېدل** :- ( و + دا + نې + د + ل ) ( مص ) ابادېدل ، تېرېدل ـ د خلقو ( په کوم ځاے کښې ) استوګنه نيول ـ ښته من کېدل ، ښېرازه کېدل ـ

**ودانېـــدونکے** :- ( و +دا + نـــې +دو+ ن + کـــے ) ( پ تر ،اس ،مـــف ،ج ـــ کـــي ) ابادېدونکے ، ښېرازه کېدونکے ـ

**ودانېدنه** :- ( و + دا + نې + د + نَ ) ( حمص ) ابادېدنه ، ودانے کېدنه ، ابادي ، وداني ـ

**ودانيو** :- ( و + دا + ن + يو ) ـ

**ودانو** :- ( و + دا + نو ) د ,, ودانۍ ،، ( جمع ) بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ

**ودت کـور** :- ( و + د +ت+کـو+ ر ) ( اس ،مع ) د پائنـدي ځانګـه ده ـ پائنـدي د نصرالدين ، زخاخېل افريدي دي ـ

**ودرول** :- ( و + د + ر + ؤ + ل ) ( مص ) اودرول ، ولاړول ، درول ، قـائمول ، د روان حالت نه /څخه ساکن کول ـ

**ودرېـــدل** :- ( و + د + رې + د + ل ) ( مـــص ) اودرېـــدل ، درېـــدل ، ولاړېـــدل ، قايمېدل ـ ( د روان حالت نه ) ساکن کېدل ـ

**ودرېـــدونکے** :- ( و + د + رې + دو + ن + کـــے ) ( پ تر ،اس ،فـــا ،ج ـــ کـــي ) ولاړېـــدونکے ، درېـــدونکے ، قائمېـــدونکے ، اودرېـــدونکے ، ســـاکن کېدونکے ـ

**ودګنئ** :- ( و + د + ګ + نئ ) ( پ تر ،صف ) د ودولو قابله پېغله ـ

**ودګنے** :- ( و + د + ګ + نے ) ( پ تر ،اس ،مذ ،ج ـــ ني ) د وادۀ قابل زلمے ، د وادۀ زلمے ، د وادۀ هلک ـ

**ودل** :- ( وُ + د + ل ) ( مص ) اُودل ـ

**ودو** :- ( و + دو ) د ,, وادۀ ،، جمع ده ـ د ,, وادۀ ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ

**ودود** :- ( و + دو + د ) ( ع ، صف ) مينـه کوونکے ، محبت کوونکے ـ دوست ـ د خدا ے پاک يو صفاتي نوم ـ د نارينه ؤ په نومونو کښې راځي ـ

**ودول** :- ( و + د + ؤ + ل ) ( مص ) وادۀ کول چاله ، په نکاح کښې ورکول ، زوئي يا لور له وادۀ کول ـ ( عموماً د لور د وادۀ کولو په معنا کښې راځي ) ـ

**ودونه** :- ( و + د + ؤ + نَ ) ( حمص ) وادۀ کونه ، په نکاح کښې ورکونه ، چاله وادۀ کونه ، ( عموماً د لور ، خور دپاره استعمالولے شي ) ـ

**وده** :- ( و + د ) ( پ ، اس ، مـو ، ج ـــ دې ) لـوے کېدنـه ، نشـونما موندنـه ، ترقي کونه ، زياتېدنه ، ترقي ـ

**ـــــ کول** :- نشوونما موندل ، ترقي کول ، ښېرازه کېدل ، لوئېدل ـ

**ـــــ کونے** :- ( ـــــ کو + نے ) ـ

**ـــــ کړونے** :- ( ـــــ ک + ړو + نے ) ( پ تر ، اس ، فا ، ج ـــ ني ) وده کوونکے ، نشوونما موندونکے ، لوئېدونکے ـ

**ـــــ ورکول** :- نمو ورکول ، نشوونما ورکول ، لويول ، پالل ـ

**وده** :- ( و + د ) ودۀ وته ، دۀ ته ـ

**وده** :- ( و + د ) ( و ـــ هوده ) ـ

**ودېدل** :- ( و + دې + د + ل ) ( مص ) وادۀ کېدل ، په نکاح کښې ورکړے کېدل ـ

**ودېدۀ** :- ( و+دې+د ) ( حمص ) وادۀ کېدنه ، په نکاح کښې ورکړے کېدنه ـ

**وديعت** :- ( و + دي + ع + ت ) ( ع ،اس ،مذ ) سپارنه ، سپردکونه ، سپردګي ، هغه څيز چې د چا په تحويل کښې ورکړے شي ـ امانت ـ

**ـــ کول** :- د امانت په طور ورکول ، ورسپارل ورکول ، عطا کول ـ

**وډ** :- ( و + ډ ) ( اس ، مذ ، ج ـــ ونه ) هغه پټے چې فصل ئې نوے نوے رېبلے شوے وي ـ هغه فصل چې د لو نه پس لا په پټي کښې پروت وي ـ

**وډ** :- ( و + ډ ) ( هند ، صف ، مذ ، مو ـــ ه ) لوے ، غټ ، مشر ـ ( هندکو : وډه = لوے )

**وډ** :- ( و + ډ ) ( تابع مهمـل ) د ,, ګډ ،، تـابع مهمـل دے ـ دې سره ئې پـه معنـا کښې زور يا بدلون پيدا کوي ـ ( و ـــ ګډ وډ ) ـ

**وډا** :- ( و + ډا ) ( هـ ،اس ،مذ ،ج ـــ يان ) لوے ، مشر ، سردار ، لکه : د خپلې علاقې تر ټولو وډا يم ـ ( هـ ـــ وډه = لوے مشر ) ـ

**وډاے** :- ( و + ډا + ے ) ( هـ ، پ تر ، اس ، ج ـــ ني ) مشر ،خان ، شته منـد ـ لکه د يوه وډائي او د يو بې وزله يارانه شوه ـ

**وډر** :- ( و + ډ + ر ) ( صفت ، مذ ) پټ ، نيام ـ

**وذي** :- ( و + ذي ) ( ع، اس ، مو ) پيتوبے ( جدران ) ، ندي ـ هغه اوبۀ کومې چې د سړي د الت نه/ څخه د شهوت په وخت را ووځي ـ

**ور** :- (و + ر) (اس،مذ،ج ــونه) دروازه ، در.مجازاً : کور ، خانه.

**ــــ پرانستل** :-

**ــــ لرې کول** :-

**ــــ بېرته کول** :-

**ــــ خلاصول** :- دروازه لرې کول ، دروازه پرانستل.

**ــــ تړل** :- ور بندول ، ور پورې کول ، راتلو ته نۀ پرېښودل.

**ــــ پورې کول** :-

**ــــ بندول** :- دروازه بندول.

**ــــ ډبول ، چاته** :- دروازه په لاس یا په سخت څیز وهل ، چې اواز ترې ووځي او د کور خلق خبر شي.چې څوک راغلے دے.

**ــــ ختل** :- حمله کول ، برید کول.

**ــــ ختنه** :- (ــخ + ت + ن) حمله کونه ، برید کونه.

**ــــ ختونکے** :- (ــخ + تو + ن + کے) (پ تر،اس، فا،ج ــکي) حمله کوونکے ، یورش کوونکے ، برید کوونکے.

**ور ــــ در نۀلرل** :- کور نۀ لرل ،د استوګنې ځاے نۀ لرل.(اواره ګرد ، د خوشے سړي په حقله وئیلے شي.

**ــــ زده کول** :- ورته زده کړه ورکول ، ورته ښئیل ، تعلیم ورکول.

**ــــ ساتے** :- (ــسا + تے) (پ تر،اس ،مذ،ج ـتي) ورساتونکے ، ور بـه ، دروانچي ، غاوچي.

**ــــ غږ برابرول** :- دوه غبر مناسبه څیزه سره برابرول. مجازاً : په دروغو سره خبرې له سمون ورکول.

**ــــ غږ ویشتل** :- (و ــ یو غږ بل غږ ویشتل) د مطلب خبره نۀ کول .د مقصدي خبرې نه / څخه لرې لرې خبرې کول. مجازاً : دروغ وئیل.

**ــــ غږ جنګول** :- نا برابر څیزونه سره برابرول.د ځانه دروغ رښتیا وئیل.له ځانه اړتو پړتو خبرې جوړول.

**ــــ په ور** :- (ــپ + و + ر) (پ تر،تف) در په در ، د یو ور نه بل ور . د یو کور نه / څخه بل کول.

**ــــ ګدا** :-(ــګ + دا) (پ تر،اس،مذ،ج ـیان) د ور فقیر ، د در ګدا.

ور ګـدا د مېخانې شـه

که شاهي غواړې له تاجه (خوشحال)

ور ــ :-(و+ر)(سابقه)د پښتو سابقه ده.چې د هغه ته ، هغوي ته وغېره معنې شیندي

**ــــ ته** :- (ــــتَ)(حرف) وهغه ته ، وهغه لره ، ورلره .لکه: ورته ئې ووې چې ... د هغۀ په مخکښې یا مخه کښې.لکه: دښمن ورته ساۀ کښې پروت وۀ.

**ــــ دوځار کول** :- ورپېښول ، ورته مخامخ کول ، ورته پېښول.

**ور** :- (و +ر)(حرف) (بل) ،، هُم ،،.

**ــــ آچول ، په چا** :- چا سره په جنګ کول ، یو کس بل سره جنګ ته امـاده کول.

**ــــ پسې** :- (ــپ + سې)(حرف) په هغه پسې ، د هغه شاته ،(د زمـان او مکان دواړو دپاره راځي).

**ــــ پورک** :- (ــپو + ر + ک)(پ تر،اس،مذ،ج ــونه)د دروازې تنبه ،تنبه.

**ــــ پورې** :-(ــپو + رې)(حرف) په هغۀ پورې، هغۀ سره لکه: ورپورې ئې وخاندل.

**ــــ په زړۀ کول** :- ورته یاد ول ، وریادول ، هغه ته یادول .

**ــــ په زړۀ کېدل** :- ورته یادېدل ، هغۀ ته یادېدل.

**ــــ په غاړه کول** :- ورته سپارل ، ورته حواله کول ، هغه ته په ذمه کول.

**ــــ په ور** :- (ــپ + و + ر) (پ تر،تف) په هر یو ور،په هر یو کور .مخامخ په مخامخ ، د یو کور د ور په مخکښې د بل کور ور.ګوانډ،ګاونډ.

**ــــ تړ** :- (ــــت + ړ)(پ تر،اس،مذ،ج ــونه) د ور د تړلو څیز،وربند.

**ــــ تګ** :- (ــــت + ګ)(پ تر،اس،مذ) هغه ته یا د هغۀ طرف ته تګ ، د هغۀ طرف ته تلنه ، ورتلنه.

**ــــ ښکاره کول** :- ورته ښکاره کول ، هغۀ ته څرګندول.

**ــــ یادول** :- ورته یادول ، هغۀ ته یادول ، ورته یادونه کول.

**یو مخ ــــ ماتېدل** :- (و ــــ ورماتېدل).

**ــــ ټکول** :- ور ډبول ، چاته تنبه وهل ، ور ګړبول.

**ــــ ماتېدل** :- د ګڼو خلقو په یو طرف تېزي سره تلل، د ګڼو خلقو ور جمع کېدل یا مائل کېدل.ور پرې وتل. لکه: خلک یو مخ ورمات وو.

**ــــ خړل** :- ورته خړل ، ورته غل متیازې کول.مجازاً: ګنده کول.

که اشنا که نا اشنا وارړه لیدل شي

د همـه وارو په ږیره ورخــړلے (خوشحال)

**ــــ ور** :- (ـــــو + ر)(لاحقه ، مذ ، مو ــه) د پښتو لاحقه ده .د نورو الفاظو نه وروستو راوستے شي.او د واله ، لرونکے معنې شیندي.لکه: زړۀ ور.

**ورسک** :- (و +ر + س + ک)(اس،مذ،ج ــو نه) د مخ هغه برخه چېرته چې ږیره پیدا کېږي. مجازاً : مخ ، بوتاړ.

مخ وسوے د دوزخ په لنبو ښـــۀ دے

نۀ چې سم کړې و ممسک وته ورسک (خوشحال)

پوزه ، د غږ هغه برخه چې د پوزې په شان بره راوتې وي.د غږۀ پوزه. هغه تنګه لار چې د دوه ؤ غرونو راوتې غاړو تر مینځه وي.

**ــــ سمه ؤل** :-مخ ورسمول ، مخامخ کېدل ، ملاقات کول ، لیدل. (طنزاً وایۀ شي)

**ــــ خرئیل** :- ږیره خرئیل ، حجامت کول.

**ــــ ماتول** :- وربوز ماتول ، مشاده ورانول ، مخ ورانول.

**ورا** :- (وُ/وَ + را)(اس ، مو ، ج ــــګانې) اورا ، د زنانه ؤ ټولے ، چې د ناوې د راوستو دپاره د جینۍ کور ته ځي.

**وراء** :- (و + را)(ع،اس،ظ) وروستو ، شاته ، هغه خوا. سوا ، ناسوا. بدون ( پـه اضـافي حالـت کښــې ئــې د همـزه د زبـر پـه ځـاے ،،ئـې ،، هـم استعمالېږي) .

**ماــ** :- (م ــ) کوم چې ددې نه اخوا دي.ددې نه / څخه علاوه.

**ورابانړ** :- (و+را + با + ڼ)(و ــــ ورابانړے) س

**ورابانړے** :- (و + را + با + ڼے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ــړي) د ورا یو غړے ، پـه هغو کسانو کښې یو کس چې ناوې راولي.

**ورابنـد** :- (و + را + ب + ن + د)(پ تر،اس،مـذ) هغـه پـړے چـې بـار پـرې د وراندې نه تړلے شي.

**ورابنے** :- (و + را + ب + نے)(پ تر،اس،مذ،ج ــني) د اوښ د پالان د یوې ډډې لرګے

**وراتۀ** :- (و + را + ت)(پ تر،صف ،ج) د ،، وریت ،، جمع شکل دے.

**ــــ پاتـۀ** :- (ـــــپا + ت)(پ تر،صف ،مذ،ج)د ،، وریت پیت ،، جمع ده . بېخي وراتۀ شوے ، نینے شوي ، کباب شوي. هغه چې د حسد وغېره له کبله ئې زړۀ ته ډېر تاؤ رسېدلے وي.

**وراتو** :- (و + را + تو) د وراتې (جمع) بدل شکل دې چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**په ــــ ژړل / جړل** :- په ځار ځار ژړل ، په غټو غټو اوښکو ژړل.

**په ــــ وراتو** :- (پ ــــو + را + تو)(پ تر،تف) په غټو غټو اوښکو، په ځار ځار.

**وراته** :- (و + را + ت)(اس،مذ،ج ــتې) د ځار ځار ژړلو دپاره راځي.

**وراتېئ** :- (و + را + ت + ئ)(اس ، مو) د ګندګۍ ځاے ، غلېنګۍ . مجـازاً:

بې کاره سړے ـ لکه : يو لرګينه توره بل د غولو / غلو وراتيږ ـ (متل) ـ

**وراثت** :- (و (ؤ) + را + ث + ت )(ع ،اس،مذ ،ج ــونه) ورثه ، ميراثه ، هغه مال وغېره چې د چا د مړ کېدلو نه وروستو د هغهٔ وارثانو ته پاتې شي ـ د مړي د مال وارث کېدنه ، ميراث خوري ـ

**وراثتي** :- (و + را + ث + ت + ي )(عف تر،صف)وراثت سره تعلق لرونکے ، وراثت ته منسوب ـ

**وراځه** :- (و + را + (ځ) ز )(اس،مو ) د ثور د مياشتې باران ـ د څناور د يو غټې کونړے براځه ـ د غوئيانو او اوښانو کونړے ـ

**وراځۍ** :- (و + را (ځ) س + ئ )(اس ، مو ) رېنګه بنګه ـ

**وراره** :- (و + را + رَ )(پ تر،صف ، مو ، ج ــرې ) هغه ښځه چې ورور ئې مړ شوے وي ، ورور مړے ـ

**وراړهٔ** :- (و + را + ړ )(پ تر،اس ،مذ ) د ورور زوے ، برادر زاده ، (خج په ,, ړ ،، باندې د ے ) ـ

**ــــ کول** :- د کومې ښځې ورور وژل /وجل ـ

**ــــ کېدل** :- د کومې ښځې ورور مړ کېدل ـ

**وراږهٔ** :- (و + را + ګ/ ژ ) قيمه کونه ، ټکړې ټکړې کونه ، قطره قطره کونه ـ

**وراږهٔ** :- (و + را + ګ/ ژ )(اس ) څرمن ، هغه څرمن چې قصابي پرې کېږي ـ (زړه پانګه ) د څرمنې نه جوړ شوې ، څرمينه ـ د ملا د تړلو څرمينه پټه يا کمربند ـ

**وراژه** :- (و + را + ژَ )(اس ، و ) برغوټي ، خنازير ـ

**وراشه** :-(و + را + شَ ) لب و لهجه ، د يو قوم يا قبيلې د ژبې د الفاظو د ادا کولو يا د تلفظ خاص انداز ـ

**وراشه** :-(و + را + شَ )(اس ، مو ، ج ــ شې ) اثرناکې خبرې ، د نصيحت ګفتګو ـ

**ــــ کول** :- اثرناکې خبرې کول ، د نصيحت ګفتګو کول ـ

**ورخوړے** :- (و +ر + خو + ړے )(و ــــ ور خاړے ) ـ

**وره** :- (و + ر ) د ,, ور ،، يو قسم جمع ده ـ چې د شمېر تورو سره راځي ـ لکه : لس وره ،لس ورونه ـ د ,, ور ،، بدل شکل چې ځينو مغيره ؤ تورو سره راځي ـ

**ــ وره** :- (ــ و + رَ )(لاحقه ،مو،ج ــرې ) د ,, ور ،، مؤنث د ے ـ

**وراغ** :- (و + را + غ )(اس،مذ ،ج ــان ) ورغهٔ ، کارغهٔ ، کارګهٔ ـ

**وراغهٔ** :- (و + را + غهٔ )(و ـــ وراغ ) ـ

**وران** :- (و + را +ن )(صف،مذ ،مو ـــه ) خراب ، برباد ، شرارتي ، شېطان ، شرير

**ــــ توب** :- (ــــ تو + ب ) ـ

**ــ والے** :- (ــ وا + لے )(پ تر،اس،مذ ) ناسازګاري ، مخالفت ـ

**ــــ تيا** :- (ـــــ ت + يا )(و ــ وران والے ) ـ

**ــــ کاره** :- (ــــ کا + ر )(پ تر،اس،صف،مو،ج ــرې ) د ,, وران کارے ،، تانيث د ے ـ

**ــــ کاري** :- (ــــ کا + ري )(پ تر،اس،مو ) وران يا خراب کار کونه ، بد کاري شرارت ، شېطانے ـ

**ــــ کاري کول** :- وران کار کول ،خرابے کول ، فساد کول ، بد کاري کول ، شېطان کول ـ

**ــــ کارے** :-(ــ کا+رے )(پ تر،صف،اس،ج ــري ) وران کارونه کوونکے ، شرير ، فسادے ، ورانے کوونکے ، ورانے اچوونکے ـ

**ـــ والے** :- (ــــــ وا + لے ) ورانے ، ورانتيا ،خرابے ، فساد ـ

**ــــ ويل** :- بد وئيل ـ

**ورانبست** :- (و + را + ن +خ/ش+ت )(پ تر ،اس ،مذ ، ج ــونه ) ورانے ، وران کاري ، برباد ے ، ورانونه ، خرابے ،شرارت ، شېطانے ـ

**ورانګ** :- ( را + ن + ګ )(انګ ، صف ) غلط ، نادرست (په پښتو کښې د سر د ,,واو ،، اواز ښځې نهٔ پېدا کېږي ) ـ

**ــــ نمبر** :- (ـــــ ن + م + ب + ر )(انګ تر ، اس ، مذ ، ج ــونه ) غلط نمبر ، عموماً چې څوک په غلطۍ سره ټيليفون وکړي ـ نو ورته وايهٔ شي ـ چې غلط نمبر دې (يا مې ) ملاؤ کړے د ے ـ

**ورانګه** :-(و + را + ن + ګَ )(اس ، ج ) د لېځۍ (د لرګي الـه ) په ذريعه د وړۍ تاوؤنه ـ

**ــــ کول** :- د لېځۍ (د لرګي الـه ) په ذريعه د وړۍ نه مزے جوړول ، وړۍ تاوول ـ

**ورانول** :- (و + را + ن + ؤ + ل )(مص ) خرابول ، مسمار کول ، رانړول ، بربادول ، وجاړول ـ محو کول ، ليکلے خط وغېره صفا کول ـ

**ورانوونکے** :- (و +را +ن + وو+ن+کے )(پ تر،اس،فا ،ج ــ کي ) ورانولو والـه ، هغه چې محو کوي ـ مسمار کوونکے ، نړوونکے ـ

**خط ـــــ** :-(خ + ط ــــ ) ـ

**ليک ـــــ** :-(لي + ک ـــــ ) ـ

**نقش ـــ** :- (ن+ق+ش ـــ ) ليکلے شوے تحرير صفا کول ، محو کول ـ

**کور ـــــ** :- کور رانړول ، مسمار کول ـ کور خرابول ، په کور کښې خرابے راوستل ـ په کور کښې بې اتفاقي يا فساد پېدا کول ـ

**ورانه** :- (و + را + نَ )(اس،مو،ج ــنې ) د وران تانيث د ے ـ وجاړه ، شاړه ، غېر اباد (ځاے ) مخالفت ، دښمني ، عداوت ، ورانے اچوونکے ، شر انګيزه ، فتنه پېدا کوونکې ـ

**ــ تانسته** :- (ــ تا + ن + س + تَ )(پ تر ، اس ، مو ج ــ ې ـــ ي ) هغه تنسته چې تارونه ئې الو ول شوي وي او جولائې نهٔ شي درستولے ـ ورانه ماشوړه ـ

هېڅ احد درسته ونهٔ اوده حميده

دا دنيــا ده يوه ورانــه تانسته (حميد )

**ــــ ماشوړه** :- (ـــــ ما +شو + ړَ )(پ تر ، اس ، مو ) د سپښسو ګونجۍ چې ورانه شي نو بيا ئې سر نهٔ معلومېږي ـ مجازاً : وران شوے کار ، چې په سمولو نهٔ سمېږي ـ

**ــــ خبره** :-(ــــ خ + ب + ر )(پ تر،اس،مو،ج ــ ې ) ورانے اچوونکے خبره ، شر فساد پېدا کوونکې خبره ـ

**ــــ اوجاړه** :-

**ــــ وجاړه** :-

**ــ ويجاړه** :- ښځې ورانه ، بالکل وران اوجاړ ځاے ـ

**ورانهٔ** :- (و + را + ن ) د ,, وران ،، بدل شکل د ے ـ ځينې ځايونو کښې د ورون په معنا کښې راځي ـ

**ورانېدل** :- (و + را + نې + د + ل )(مص ) ويران کېدل ، غېر اباد کېدل ـ نړېدل ، مسمار کېدل ، رنګېدل ، په جګړه کېدل ، په جنګ کېدل ، خرابېدل

**ورانې** :- (و + را + نې )(پ تر ،اس،ج ) د ,, ورانے ،، جمع ده ـ د ,, ورانے ،،بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ

**ورانۍ** :- (و + را + ن + ئ ) د ,, ورانې ،، جمع ده ـ د ,, ورانې ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ

**د ـــ خبره** :- (د ــ خ + ب + ر )(پ تر ،اس ، مو ، ج ــ رې )داسې خبره چې شر ، فساد پېدا کوي ، د نفاق د پېدا کولو خبره ، د مخالفت د پېدا کولو خبره

**د ــــ سره** :-(د ــــ س +ر )(پ تر ،اس ) ډېر وران کارے سړے ، ډېر شرير

شیطان کارے۔

**ورانے** :-(و + را + نے)(پ تر،اس، مذ، ج ـــ ني) وران کاري، فساد، شرارت، نړونه، مسمار کونه، نقصان رسونه، تباه کاري۔

**ـــ آچول په څه کښې** :- په کومه معامله کښې اړیکه اچول، معامله خرابول، په کار کښې خنډ اچول، علت کول، شیطانے کول۔

**ـــ اچول، په چا کښې** :- دښمني پیدا کول، مخالفت پیدا کول۔

**ـــ راتلل** :- مخالفت پیدا کېدل، مخالف کېدل، تعلقات خرابېدل۔

**ـــ کول** :- شرارت کول، فساد کول، وران کاري کول۔ نړونه کول، مسمارونه کول، نقصان کول، تاوان رسول۔ تباه کول، تباه کاري کول۔

**ورانیدۀ** :- (و + را + نے + د)(حمص) ورانېدنه، ورانوالے، وران کېدنه، خرابېدۀ، په جنګ جګړه کېدۀ۔

**ورایه** :-(و + را + يَ)(اس،ظر) لرې، دور، د ډېرې فاصلې څخه (عموماً ,, له،، سره راځي)۔

**له ـــ** :- (لـــ) له لرې، د لرې ځاے نه / څخه۔ د ډېرې فاصلې نه / څخه۔

لکه: میاشت له ورایه معلومېږي (متل)۔

**ورایزه** : (و + را + ي + زَ)(اس، مو، ج ـــ زې) طلبګاره ښځه۔

**وربانِد** :-(و + ر + با + ن + دي)(حرف، جار) په، پر۔ لکه: دومره قرض مې وربانديږ دے۔

**وربازۀ** :-(و + ر + با + ز) د ,, وربوز ،، بدل شکل دے۔ ځینو مغیره ؤ تورو سره راځي۔

**وربخل** :- (و + ر + ب + خ + ل)(مص)(و ـــ وربخښل)۔

**وربخښل** :-(و + ر + ب + خ/ش + ل)(مص) ورته ورکول، ورعطا کول، ورته معاف کول

**وربشل** :- (و + ر + ب + ش + ل)(و ـــ وربخښل)۔

**وربشه** :- (و +ر+ب+شَ)(اس،مو،ج ـــ شې) جَو،مشهوره غله ،اوربشه، جو، اوربشه یو شے دے (متل)۔ مجازاً: ژوند، حیات، ژوندون، روزي۔

لکه: نوره اوربشه ئې نۀ وه۔

**یو ـــ** :- (یو ـــ)۔

**یوه ـــ** :-(ي + و ـــ)(پ تر،حرف) د مقدار د توري په طور راځي۔ لږ شان، پوتے شان۔

**یو ـــ قدري** :-(یو ـــ ق + د + رې)(پ تر،حرف) لږ شان، یو پوتے شان۔

**ـــ خلاصېدل** :-

**ـــ تمامېدل** :- مجازاً: عمر خلاصېدل، مرګ راتلل۔

**وربل** :- (و/ؤ + ر + ب + ل)(اس، مذ، ج ـــ ونه) اوربل، د جینکو په تندي پرېښودے شوي وېښتۀ۔ د یو کالي نوم دے چې په تندي لګولے شي۔

**وربلے** :- (و + ر + ب + لے)(اس،مذ،ج ـــ لي) د پائنځي خولۀ، نوې پینځې چې د زور پرتوږ لګولے شي۔

**وربلکے** :-(و + ر + ب + ل + کے)(پ تر،اس،مذ، ج ـــ کي) اوربلکے، اورکے۔

**وربلوټے** :- (و + ر + ب + لو + ټے)(پ تر،اس،مذ،ج ـــ ټي) د وربل یا د اوربل اسم تصغیر۔ وړوکے وربل۔

یو سور کے پېزوان په پوزه

وربلوټے یـــو څـــو تاره (خوشحال)

**وربو** :-(و + ر+ بو)(اس،مذ) د ور په مخکښې میدان، د کور نه چارچاپېره ځاے۔

**وربوز** :- (و + ر + بو + ز)(اس،مذ،ج ـــ ونه) د ځناور، لکه د سپي وغېره باهر ته راوتې خولۀ مخ۔ اوربوز۔ مجازاً او حقارتاً د بني ادم مخ۔ د غر هغه لوړه برخه چې لکه د پوزې په بره وتې وي۔

**ـــ بوټ نیول** :- تندے تریوول، د مخ د شکل څخه، ناخوښي او خفګان څرګندول۔

**ـــ بوټول** :- تندے بوسول، مرورېدل۔

**ـــ پړسول** :- (و ـــ وربوز بوټ نیول)۔

**ـــ وران نیول** :- خفه شکل جوړول، د مخ نه خفګان ښکاره کول۔ ژړغونې ښکل جوړول۔

**کوږ ـــ نیول** :- (و ـــ وران وربوز نیول)۔

**ـــ ماتول** :- د مخ کاسه یا هډوکے ماتول، د مخ شکل ورانول۔ سخته سزا ورکول۔ موشاده ورانول۔

**وربوزے** :- (و+ر+بو+زے)(اس،مذ،ج ـــ زي) د دروازې غلام ګرد، پلوړه۔

**وربوي** :- (و + ر + بو + ي)(و ـــ وربوزے)۔

**وربوے** :-(و + ر + ب + ے)(اس،مذ،ج ـــ وي) د کور نه ګېر چاپېره زمکه، غولے۔ (په ځینو ملکونو کښې غولے، صحن د ابادۍ دننه ګېر وي او د ابادۍ نه باهر میدان ته صحن نۀ وائي) خو زمونږ ملک کښې غولے، د کور د کوټو ته مخامخ خالي ځاے ته وائي۔

**ورت** :-(و + ر + ت)(اس، مذ) د وړو د یوې لوبې نوم دے۔

**ورت** :-(و + ر + ت)(و ـــ وریت)۔

**ورتارګه** :- (و + ر + تا + ر + ګَ)(اس، مو، ج ـــ ګې) مردار دانه، د دانې یو قسم دے او مارګه۔

**ورتلل** :- (و + ر + ت + ل + ل) د هغه طرف ته، یا هغۀ له تلل، وهغۀ څخه تلل۔ زده ,,بودل،، په استعمال ئې پوهېدل۔ (ورتلل سره ډېر اسمونه یا مصدرونه لګولے شي۔ په دغه صورت کښې دا مصدر په چېل یا طریقه پوهېدل معنې ورکوي۔ لکه ګډا ورتل، لیکل ورتلل، لوستل ورتلل، ترکاڼ توب ورتلل، لوهار توب ورتلل او داسې نور)۔

**چل ـــ** :-(چ + ل ـــ) طریقه ورتلل، په استعمال ئې پوهېدل۔

**غل ـــ** :-(غُ + ل ـــ) د غلو کولو حاجت پېښېدل۔ چې وخت د کارراشي نو نوچۍ له غُل ورشي (متل)۔

**متیازې ـــ** :- د متیازو (پېشاب) کولو حاجت پېښېدل۔

**قې ـــ** :- (قې ـــ)۔

**باقۍ ـــ** :- (با +ق+ی ـــ) قې کولو ته حاجت پېښېدل، د باکۍ / باقۍ کولو حاجت پېښېدل۔

**ګډا ـــ** :- ګډېدل ورتلل، د ګډېدلو په چل پوهېدل۔

**ورتل** :-(و + ر + ت + ل)(مص) وربشل۔

دے فقیر زړګے خرڅ کړ

دا دنیـــا مې وورتلـــه (ارزاني)

**ورتلل، په چا** :- چاله ورتلل، په چا پېښه کول، په چا حمله کول۔

**ورتلۀ** :-(و + ر + ت + ل)(حمص) ورله تلنه، وهغه ته تګ زده ,,بودنه،،، پوهېدنه

**ـــ راتله** :- (ـــ را + ت + ل)(پ تر،تف) تلۀ راتلۀ، تګ رتګ۔

**ورتول** :- (وَ/وُ + ر + ت + ؤ + ل)(و ـــ وریتول) د ,, ورت،، په لوبه کښې۔ خپل ملګرے د حریف (مخالف) د نیولو دپاره خبرول۔

**ورته** :-(وَ + ر + تَ)(حرف) په شان، مانند، په رنګ، مشابه مشابهت لرونکے۔

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے)(پ تر،اس،مذ) مشابهت، یوشان والے، هم شکلي

**ورته** :- (وُ + رْ + تَ)(اس، مو) د ,, ورت،، تانیث دے۔

**ـــ پته** :- (ـــ پ + ت) د ,, وریت پیت،، تانیث دے۔

**ورته** :-(وُ + رَ + تَ)(و ـــ پرته)۔

**ورته** :- ( ؤ + رْ + ت )( اس،مو ، ج ) رېشلې شوې ورۍ.

**ورتۀ** :- ( وَ + رْ + ت )( **فعل** ) د ,, ورتلل ،، مصدر نه/ **ځخه** د ماضي استمراري (واحد غائب ) **فعل.**

**ورتې** :- ( وَ + ر + تې )( اس ، مذ ، ج ـــ ي ) د ښې قيافې خاوند ، د ښـۀ كـړۀ وړۀ څښتن.

ـــ **پتې** :- ( ـــ پ + تې )( پ تر ، اس ، مو ، ج )د ,, ورته پته ،، **جمع** ده.

**ورتئ** :- ( و + ر + ت + ئ ) د ,, ورتے ،، **تانيث** دے.

**ورتېدل** :- ( و + ر + تې + د + ل )( مص ) وريتېدل ، كباب كېدل ، په بټ كښې يا په تبخي وغېره پخېدل.

**ورتېدنه** :- ( و+ر+تې+د+نَ )( حمص ) وريت كېدنه ، سور كېدنه ، په اور باندې يا په تبخي يا په بټ كښې سور كېدنه.

**ورتېدونكې** :- ( و + ر + تې + دو + ن + كې )( پ تر،اس،فا ،ج ـــ كي ) وريت كېدونكې ، په اور باندې سور كېدونكې. په زړۀ باندې تاؤ خوړونكې.

**ورټ** :- ( و + ر + ټ )( اس ، مذ ) مسلسله ژړا / جړا.

ـــ **ورټ** :-( ـــ و+ر+ټ)( پ تر،اس ) مسلسله ژړا ،په غتهو اوښكو ژړا.

ـــ **ژړل** :-( ـــ ژ + ړ + ل ) مسلسله ژړا كول ، په غتهو اوښكو ژړل.

**ورټ** :- ( و + رَ + ټْ )( صف،مذ ،مو ـــ ه ) رټ ، سخت او ستغ ( جواب ).

ـــ **جواب وركول** :- سخت جواب وركول ، بېخي انكار كول.

**پـه ـــ ورټ ژړل** :- ( پ ـــ و+ ر+ ټ + ژ+ړ+ ل ) ډېـر ډېـر ژړل ، پـه غتهـو غتهـو اوښكو او **مسلسل** ژړل.

**ورثه** :- ( و + ر + ثَ ).

**ورثا** :- ( ـــ ثا)(ع،اس،ج ) د ,, ورث ،، **جمع** ده .وارثان ،ميراث خوارۀ.

**ورجـو** :- ( و + ر /ري + جـو ) د ,, ورجے ،، **جمع بـدل شـكل** دے چې د مغيـره ؤ تورو سره راځي.

**ورجـون** :- ( و + ر + جـو+ ن )( حمـص ) ورجېدنـه ، راغورزېدنـه ، خورېدنـه ، پراګنده كېدنه.

**ورجې** :- ( و + ر + جې )( اس ، جم ) وريجې ، ( هـ ـ چاول ).

**ورچـانې** :- ( و + ر + چـا + نـې )( اس ، ظـر ) بـاهر ، خـارج ، بېـرون، ظـاهراً ، پـه ظاهر ، ښكاره.

ـــ **(ر) وتل** :- باهر ورتلل ، د كور نه باهر راتلل.

ـــ **اېستل / اباسل** :- باهر ( ته ) اوباسل ، خارج كول.

**ورچنے** :-( و + ر + چ + نے )( اس ، ظر )( و ـــ ورچانې ).

ـــ **اېستل /اباسل** :- ( و ـــ ورچانې اېستل ).

ـــ **(را) وتل** :- ( و ـــ ورچانې (را) وتل ).

**ورچنيز** :- ( و + ر + چ + ني + ز )( پ تر،صف،مذ ،مو ـــ ه ) بهرانے ، بېروني ، خارجي

**ورچينـې** :- ( و + ر + چـي + نـې )( و ـــ ورچـانې )( و + ر + چـي + نـي ) هـم تلفـظ كېږي لكه : د كړكۍ څخه ورچينې.

ـــ **اېستل /اباسل** :- باهر اېستل ، باهر راوښكل.

ـــ **وتل** :- باهر وتل.

**ورڅخه** :- هغه ، څخه ، هغه سره.

ـــ **كښېښنودل** :-محاوره ده. ان سره كښېښنودل ، په هغه موقع وئيلے شي.چې د چا ځۀ خاص څيز ته حاجت نۀ وي.يعني زما پكار نۀ دے.ور ـــ در سابقه ورسره لګي

**ورڅېرمـه** :- ( و+ ر + (ت) سې + ر + مَ )( پ تـر،اس ، ظـر ) ورتـه مخـامخ ، ورتـه څېلمه ، هغه ته مخامخ.

ـــ **كول** :- ورته مخامخ كول ، ورته مخكښې كول.

ـــ **كېدل** :- ورته مخامخ كېدل ، ورته مخكښې كېدل.

**ورځ** :- ( و + رَ + (د) + ز )( اس،مو،ج ـــ ځې ) روز ، روځ ، **عمر** ، ژوند ،قسمت ، نصيب ،يادګـار ورځ ، كومـه خـاص يادګـاري ورځ ، لكـه د ازادۍ ورځ.

ـــ **اړول** :- مجازاً: په بېكارۍ كښې وخت تېرول ،په كاركښې سستي كول.

ـــ **اوړېدل** :- ورځ تېرېدل ، ورځ اړولې ليدل ، شپه كېدل.

ـــ **او شپه** :- ( ـــ او + ش + پَ )( پ تر،اس،ظر ) د ورځې او د شپې .مجاز اً : هر وخت، شامدام ، **تل.**

ـــ **بدېدل** :- ورځ خرابېدل ، قسمت خرابېدل.بدقسمتے راتلل.

ـــ **تـر ورځـه** :- ( ـــ ت + ر+ و + ر +(د) زَ )( پ تـر ، اس ، ظـر ) د يـوې ورځـې پـه مقابله كښې په بله راتلونكې ورځ. لكه : حالات ورځ تر ورځه خرابېږي

ـــ **چارې** :- ( ـــ چـا + رې )( پ تر،اس،مـذ ،ج ـــ ري ) **هغـه كـار كـوونكے چـې** د ورځې ورځې په اجرت كار كوي.د دهاړۍ كاركن يا مزدور.

ـــ **ختل** :- ورځ كېدل ، نمر /نور راپورته كېدل.

ـــ **سمېدل** :– ورځ ښۀ كېدل،حالات ښۀ كېدل ، ښۀ وخت راتلل.

ـــ **شپه نۀ كتل** :- مجازاً : د ورځې او شپې كار كول ، ډېر سخت محنت كول.

ـــ **شام كول ، په چا** :- د ورځې رڼا پـه ځـاے د ماښـام تيـارۀ كـول ، مجـازاً : د خوشحالۍ په ځاے غم راوستل.

ـــ **شپه كېدل** :- پـه رڼـا ورځ كښـې تيـارۀ راتلـل ، بـد حـال راتلـل ، حـالات خرابېدل. (چې بخت كوږه شي نو ورځ شپه شي ).(متل ).

ـــ **كتل نۀ شپه** :- د ورځې او شپې د وختونو شمار نۀ كـول ، هـر وخت پـه كـار كښې لګيا اوسېدل ، ډېر سخت محنت كول.

ـــ **لاړه** :- ( جمله ) ورځ ختمه شوه ، ورځ تېره شوه.

**په يوه نه يوه ـــ** :- ( پ تر ، اس ، ظر ) يوه ورځ بـه خـوا مخـوا ، ضـرور بـه يـوه ورځ (دا كار وشي ).

**خواره ـــ** :- ( خ ـ وا + ر ـــ )( پ تر ، مو ) بدقسمتے ، د بدنصيبۍ ورځ يا عمر

**د كار ـــ** :- ( د ، كا + ر ـــ )( پ تر ، اس ، ظر ) **هغه ورځ چې په كښې** سركاري ملازمان كار كوي. ( د چُټۍ د ورځ په مقابله كښې ).

**رڼا ـــ** :- ( ر + ڼا ـــ )( پ تر،اس،مو ) روښـانه ورځ ، داسې ورځ چې مخكښـې د وريـځ وغېـره هېـڅ قسـم لـه معمـولي شـان تيـارۀ هـم نۀ وي . ( د تـورې شپې په مقابله ). لكه : په رڼا ورځ ئې غلا وشوه.

**سپينه ـــ** :- ( س + پي + نَ ـــ )( و ـــ رڼا ورځ ).

**ستړې ـــ** :- ( س + ت + ړې ـــ )( پ تـر ، اس ، مـذ ) بـد نصـيبي ، بدقسـمتي ، د بدنصيبۍ ورځ يا عمر.

**لويه ـــ** :- ( لو + يَ ـــ )( پ تر ، اس ، مو ) د قيامت ورځ ، قيامت.

ـــ **پـه ورځ** :- ( ـــ پ + و + ر + (د) ز )( پ تـر ، اس ، ظـر ) هـره ورځ ، د يـوې ورځې په مقابله كښې په بله ورځ ، بتدريج.

**دورځونه /څخه يوه ـــ** :- په تېـرو شـپو ورځـو كښـې پـه يـوه خاص ورځ كښـې . ( عموماً د قيصې د وئيلو يا د واقعې د بيانولو په موقع وئيلے شي).

ـــ **ښۀ كېدل** :-

ـــ **بالا كېدل** :- د ورځ حالت په ښۀ حالت كښې بدلېدل.خوش بختي راتلل.

ـــ **ګرځېدل ، دچا** :- خـوش قسـمتے راتلـل ، بخـت ښـۀ كېـدل، ښـې ورځـې راتلل.

ـــ **ګوډول** :- ورځ تېرول ، ورځ اړول.

**ورځـو** :- ( و + ر + (د) زو )د ,, ورځـې ،، ( **جمـع** ) **بـدل شـكل چـې** د **مغيـره** ؤ تورو سره راځي.

ـــ **شپو** :- ( ـــ ش + پو ) د ورځې شپې بـدل شـكل دے چې د مغيـره ؤ تـورو سره راځي.

**دده‌ؤ ـــ شپو** :- (پ تر ، اس ، ظر) مجازاً : د لږ وخت ، د لږې زمانې۔
د دوه‌ؤ ورځو شپو په اشنايئ کښې
د شبنم پـــــه اوښـــــو ژاړي لالاوينې (حميد)

**د ـــ نه /څخه يوه ورځ** :- (و ـــ د ورځو نه /څخه يوه ورځ)۔

**ورځپانه** :- (و + ر + (د) ز + پا + نه) (پ تر ،اس ،مو ، ج ـــ ړې) اخبار ، روزانه اخپار۔

**ـــ ليکونکے** :- (ـــ لي + کو + ن + کے) (پ تر ، اس ، فا ، ج ـــ کي) د اخبار ليکونکے ، د اخبار مدير ، اېډيټر۔

**ورځے** :- و + ر + (د) زې) د ,,ورځ ،، جمع ده -د ,,ورځ ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**ـــ اړول** :-

**ـــ تېرول** :- (مجازاً) بې خونده يا بې کاره ورځې (وخت ، عمر) تېرول ۔ استوګنه لرل۔ قرار نيول۔ لکه : هلته مې لس ورځې تېرې کړې۔

**ـــ او شپې** :- (ـــ او + ش + پې) د ورځ (او) شپه جمع ده -وختونه ،وخت ، زمانه، لکه : د سپرلي ورځې شپې وې۔

**ـــ بدليدل** :- ورځې نورې کېدل ،ورځې بل شان کېدل۔ حالات بدلېدل ، بنۀ حالات راتلل۔ موسم بدليدل۔

**ـــ ځړول** :- وروځې ځوړندول ، تندے بوټول ، ناخوښې ښکارول۔

**ـــ ځړېدل** :- وروځې ځوړنديدل ، تندے بوټېدل ، ناخوښه کېدل ، بوسېدل۔

**ـــ درنېدل** :-وروځې درنې کېدل۔ (وـــ ورځې ځړېدل)۔

**ـــ راتلل** :- موسم راتلل ، مناسب وخت راتلل۔

**ـــ شمېرل** :- انتظار کول۔

**د ـــ** :- (د ـــ) (پ تر ، اس ، ظر) د ورځ په دوران کښې۔ د ورځې په وخت۔

**هغه ـــ لاړې** :- (جمله) هغه وختونه تېر شول -هغه ښکلې يا موافقې ورځې تيرې شوې۔ (اوس بل شان وخت دے)۔

**د ـــ ورځې** :- (د ـــ و +ر + (د) زې) (پ تر ،اس ،ظر) هره ورځ ، د هرې ورځې سره متعلق لکه : د ورځې ورځې مزدوري اخيستل۔

**ورځم** :-(و + ر + (د) ز + م) (فعل) د ,,ورتلل ،، مصدر څخه د حال (متکلم) فعل۔

**ورځنے** :-(و + ر + (د) ز + نے) (پ تر ،اس ، صف ،مذ ، ج ـــ نې) ورځ سره تعلق لرونکے ، ورځ ته منسوب ، لکه : ورځنے کار۔ د ورځو۔ لکه : لس ورځنے محنت۔

**ورځنۍ** :- (و + ر + (د) ز + ن+ ئ) (پ تر ،اس ،صف ، مو) د ,,ورځنے ،، تانيث دے۔

**ورځه** :-(و + + (د) ز) (فعل) د ,,ورتلل ، مصدر څخه د امر فعل -ورله لاړ شه ، لاړ شه۔

**ورځي** :-(و + ر + (د) زي) (فعل) د ورتلل مصدر څخه د حال (واحد غائب) فعل۔

**ورځئ** :- (و + ر + (د) ز + ئ) (فعل) د ,,ورتلل ،، مصدر نه د جمع امر فعل ، تاسو (هغه له) لاړ شئ۔

**ورځه** :- (و + ر + (د) زَ) (اس ،مو ،ج ـــ ځې) ابرو ، وروځه ، وروزه۔

**ـــ خره نيول** :- تندے تريو نيول ، خفګان يا نفرت ښکاره کول۔

**ـــ ځړول** :- وروځې غوټه کول ، خفګان يا کرکه ښکاره کول ، ناخوښې ښکاره کول۔

**ورخ** :- (و + ر + خ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د اوبۀ خور په والۀ کښې هغه ځاے د چېرته نه چې پټي ته اوبۀ اړولے شي۔ د ولې نه پټيې ته اوبو ور اړولے شي۔

**ـــ پوله** :- (ـــ پو + ل) (پ تر ،اس ،مو ، ج ـــ لې) د پټو د اوبۀ خور يوه طريقه۔

**سري ـــ** :- (س + ري ـــ) (پ تر ،اس ،مذ) هغه پټيے چې د اوبۀ خور ورخ ئې د ولې سر طرف ته وي۔ هغه سړے چې د نورو نه ئې پټيے اګاهو اوبۀ کېږي

**ورخاتۀ** :- (و + ر + خا + تۀ) (وـــ ورختنه)۔

**ورخاړے** :- (د + ر + خا + ړے) (اس ، مذ) خرفه ، قلفه ، مشهور ساګ۔

**ورخاړے** :- (و + ر + خا + ړے) (اس ، مذ) د ګډو بزو د دستونو بيماري۔

**ورخړله** :- (و + ر + خ + ړ + ل) (و ـــ ورخړه)۔

**ورخړے** :- (و + ر + خ + ړے) د ,,ورخړه ،، جمع ده -د ,,ورخړه ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**په ړيره ـــ** :- په ړيره خس ، د غلا نخښه ، د غل نخښه۔

**ورختنه** :- (و + ر + خ + ت + نَ) (حمص) ورباندې ورتله ، حمله پرې کونه۔

**ـــ کول** :- حمله کول ، په چا ، زياتے کول په چا۔

**ورختنے** :- (و + ر + خ + ت + نے) (پ تر ،اس ،مذ) ورختونکے ،حمله کوونکے۔

**ورخه** :- و + ر + خَ) د ,,ورخ ،، يو قسم جمع ده ۔ چې عموماً د شهر اسمونو سره راځي د ,,ورخ ،، بدل شکل چې د ځينو مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**اوبۀ د ـــ اوړېدل** :- اوبۀ د پټي د ورخ نه وړاندې تيرېدل۔ مجازاً : موقع د لاسه وتل ، موقع نۀ پاتې کېدل۔

**ورخه** :- (و + ر + خَ) (اس ، مو ، ج ـــ خې) وړوکې ورخ ، وړه شان نالۍ ، ولګۍ۔

**ورختنۍ** :- (و + ر + خ +ت +ن+ئ) (د ,,ورختنے ،، تانيث دے)۔

**ورخيړه** :- (و + ر + خي + ړَ) (اس ، مو ، ج ـــ ړې) نفرت انګيزه خبره ، ناپسنده خبره ،له کرکې ډکه خبره ۔

**ورخيزه** :- (و + ر + خي + زَ) (صف ،مو) ورخ سره تعلق لرونکې هغه زمکه چې د ولې د ورخ سره جخته وي۔

**ورخيمزه** :- (و + ـ ر + خي + م (د) زَ) (اس ،ظر) کچه غرمه ، غرمکۍ ، د نيم څاښت وخت۔

**ورد** :-(و + ر + د) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه /اوراد) هغه کار چې هره ورځ مسلسل کولے شي -ذکر ،تسبيح ،وظيفه ،زمنه ،د قرآن پاک بيا بيا تلاوت کونه۔

**ـــ کول** :- وظيفه کول ، د تسبيح کلمات ويل ، يو لفظ يا خبره بيا بيا وئيل۔

**ـــ زبان** :- (ـــ (د) ز + با + ن) (عف تر ،اس ،مذ) يوه خبره چې په ژبه باندې بيا بيا راځي۔ ښۀ ياد کړے۔ مشهوره خبره۔ چې د هر چا په خولۀ وي۔

**ورد** :- (و + ر + د) (ع ،اس ،مذ) ګل ، د ګلابو ګل ۔ د ګلابو د ګل په شان له سور۔

**وردغاړي** :- (و + ر + د + غا + ړي) (پ تر ،صف) هغه کار وغېره چې د غاړې شوے وي۔ هغه کار وغېره چې د چا په ذمه شوي وي۔

**وردي** :-(و + ر+دي) (عف ، تر ، صف) د ګلاب د ګل په رنګ ، ګلابي سور۔

**وردي** :- (و + ر + دي) (اس ، مو) د فوځ يا د پوليس ، يا د کوم خاص (عسکر غونډې جماعت) خاص جامه ، يوني فارم۔

**ـــ اچول** :- د فوځي يا د پوليس د غړي خپلې خاص جامې اغوستل۔

**وردۍ** :-د ,,وردي ،، جمع ده ۔ د ,,وردي ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**په ـــ کښې** :- د فوځ يا د پولس په خاص جامه کښې -مجازاً : په ډېوټۍ باندې ۔ د منصبي فرض د ادا کولو په وخت۔

**ور رسېدل** :- (و + ر + سې + د + ل) (پ تر ،اس ،مف ،ج ـــ لي) هغه چې چاته رسېدلے وي۔ لکه وررسېدلے نقصان۔

**ـــ رسېدل** :- (ـــ ر + سې + د + ل) ورته رسېدل ، ورته نزدې کېدل ، ورسره سمېدل ، ورپوهېدل ، فهمېدل۔

**ور رولے** :- (و + ر + ؤ + لے) (پ تر ،اس ، مف ، ج ـــ لي) شلولې شوې جامه

، جامه داسې شلولې شوې چې څۀ برخه (تارونه) ئې شليدلي وي څۀ نښتي او په ځاے وي.

**ور رونه** :- (و + ر + ر + ؤ + نَ)(حمص) شلونه ،د جامې څۀ برخه را شوکونه چې څۀ برخه ئې راجدا شي او څۀ برخه ئې نښتې وي.

**ور رېدل** :-(و + رې + د + ل)(مص) شلول ، يوه برخه (د جامې) د بلې خبرې څخه راجدا کېدل.چې څۀ تارونه يا برخه ئې لانښتې وي.شوک په شوک کېدنه.

**ور رېدۀ** :- (و + ر + رې + د)(و ـــ ور رېدنه).

**ورز** :-(و + ر + ز)(ـــ ورځ)(نور الفاظ هم د ,,ورځ ،، ترلاندې وګورئ).

**ورزړ** :- (و + ر + ز+ ز)(اس ، مذ ، ج ـان) مرز ، نورز ، بټېر.

**ورزش** :- (و + ر + ز+ ش)(ف،اس،مذ،ج ـــ ونه) کسرت ،رياضت ، د بدن اعضاؤ له مسلسل يو شان حرکت ورکول ، چې مضبوط شي.

**ـــ کول** :- کسرت کول ، رياضت کول ، د بدن اعضاؤ له مسلسل يو شان حرکت ورکول ، چې مضبوط شي.

**ـــ کار** :- (ـــ کا + ر)(پ تر،اس،مذ،ج ـــ ان) ورزش کوونکے ، د صحت يا د بدن د مضبوطولو دپاره کثرت کوونکے.

**ـــ کاره** :- (ـــ کا + رَ)(پ تر،اس،مو، ج ـــ رې) د ,,ورزش کار ،، تانيث دے.

**بدني ـــ کول** :- (ب + د + ني ـــ) داسې کسرت يا ورزشونه کول چې د بدن پلي وغيره غټې او مضبوطې شي.بدن سازي کول.

**ورزل** :- (و + ر + ز + ل)(مص) قيمه کول ، وړې وړې ټکړې کول .ريزه ريزه کول.

**ورزنه** :- (و + ر + ز + نَ)(حمص) قيمه کونه ، کوتره کونه ، وړې وړې ټکړې کونه، ريزه ريزه کونه.

**ورزو** :- (و + ر + زو)(اس،مذ) نفرت ، کرکه ، ناخوښي.

**ـــ کول** :- کرکه کول ، نفرت کول.

**ورزول** :- (و + ر + ز + ؤ + ل)(مص) پورته پورته کول ، بالابالاکول.

**ورزولے** :- (و + ر + ز + و + لے)(پ تر ، اس ، مف ، ج) بره بره کړے ، بالا بالا کړے

**ورزولے** :- (و + ر + ز + و + لے)(پ تر،اس،مف ، ج) قيمه کړے ، وړې وړې ټکړې کړې ريزه ريزه کړې ، ورزلے.

**ورزېدل** :- (و + ر + زې + د + ل)(مص) بره بره کېدل ، پورته پورته کېدل.

**ورزېدل** :- (و + ر + زې + د + ل)(مص) الوتل ، پرواز کول.

**ورزېدل** :- (و + ر + زې + د + ل)(مص) قيمه کېدل ، ريزه ريزه کېدل ، ټکړې ټکړې کېدل ، ذره ذره کېدل.

**ورزېدنه** :- (و + ر + زې + د + ن)(حمص) قيمه کېدنه ، ذرې ذرې کېدنه.

**ورژل** :-(و + ر + ژ + ل)(مص) ژوبلول ، قيمه کول ، وړې وړې ټکړې کول ، ورزل، ورجل.

**ـــ کول** :- قيمه کول.

**ورژلے** :- (و + ر + ژ + لے)(پ تر،اس ،مف ،ج ـــ لي) قيمه شوے ،کوتره شوے ، ذرې ذرې شوې.

**سينه ـــ** :- (سي + ن ـــ)(پ تر،اس،مف،ج ـــ لي) هغه چې سينه ئې قيمه شوې وي.هغه چې زړۀ ئې سخت زخمي وي.

**ورژنه** :- (و + ر + ژ + نَ)(و ـــ ورزنه).

**ورژون** :-(و + ر + ژو + ن)(حمص) درژېدنه ، راغورزېدنه ، خورېدنه ، پراګنده کېدنه

**ور ژونے** :- (و+ر+ ژو+نے)(اس،مذ) د خوراک يو قسم څيز دے.

**ورږ** :- (و + ر + ګ/ږ)(اس،مذ،ج ـــ ونه) د اس د څټ وېښتۀ ،ايال،يال.

**ورږه** :- (و + ر + ګ/ږ)(اس،مو،ج ـــ ږې) وارګۀ.

**ورږينه** :- (و + ر + ګي + نَ)(صف،مو،ج ـــ نې) څرمينه ،د څرمنې نه جوړ شوے پړے.

**ورستن** :- (و +ر + س + ت + ن)(اس،مو،ج ـــ نې) برستن.

**ورستنول** :- (و + ر + س + تو + ن+ ؤ + ل)(مص) ورته ستون کول ، پستنه ورلېږل، واپس استول.

**مخ ـــ** :- مخ ور اړول ، مخ ورته ورګرځول ، توجه ورکول.

**ورستنے** :-(و + ر + س + ت + نے)(پ تر،اس،ظر) بل پسې درجه يا مقام لرونکے، د ټولو نه پس درجه يا ځاے لرونکے اخري.

**ورستو** :- (و + ر + س + تو)(اس،ظر) پس ، شاته (د مکان او زمان دواړو دپاره استعمالېږي).

**ورستول** :- (و + ر + س + ت + ؤ + ل)(مص) وروست کول ، زوړلو سره کمزورے او زر شليدلے کول.

**ورسته** :-(و + ر + س +ت)(صف،مو،ج ـــ تې) د ,,وروست ،، تانيث دے . زوړ ، د زوړ والي په وجه کمزورے او زر شلېدونکے .

**ورسته** :- (و + ر + س + ت)(اس،مو،ج ـــ تې) وست ، متاع.

**ورسه** :-(و + ر+سَ)(**فعل**) د ,,ورتلل ،، مصدر نه د امر **فعل. هغه له ورشه.**

**ورستے** :- (و + ر + س + تِ) د ,,وروست ،، تانيث دے . لکه : ورستے خبرې کول

**ورستے** :- (و + ر + س+ تے) د ,,ورسته ،، جمع ده .د ,ورسته، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ خبرې** :-(ـــ خ + ب + رې)(پ تر،اس،مو،ج) ناشولتې خبرې ، بېهوده خبرې ، نامناسبه خبرې.

**ورستېدل** :- (و + ر + س + تې + د + ل)(مص) زړېدل ، د زوړوالي له کبله کمزورے او زر شلېدونکے کېدل.

**ورستيمبال** :- (و + ر + س + تي +م+ با + ل)(اس،مذ،ظر) د ټولو نه اخر ، د ټولو وروستو ، په اخره کښې.په وروستو وخت کښې. (د وروستو او د مبال څخه جوړ شوے مرکب لفظ دے).

**ورستې واچ** :- (و + ر + س + تې + وا + چ)(انګ،تر،اس،مذ،ج ـــ ونه) په لاس د تړلو ګړۍ ، د لاس ګړۍ.

**ورسي** :- (و + ر + سي)(**فعل**) د ,,ورتلل ،، **فعل څخه د ماضي شرطي فعل.**

**ورسئ** :- (و + ر + س + ئ)(**فعل**) د ,,ورتلل ،، مصدر نه د امر (جمع) **فعل** . تاسو ورشئ.تاسو هغه له يا هلته لاړ شئ.

**ورشاړے** :-(و + ر + شا + ړے)(اس ،مذ ،ج ـــ ړي) اورشاړے ، چقمق ، ټوپک.

**ورشمے** :- (و + ر + ش + مے)(اس ،مذ ،ج ـــ مي) مړې پسې د اولنۍ شپې خېرات ، مړ شومه.

**ورشو** :- (و + ر + شو)(اس،مو،ج ـــ ګانې) د څر مېدان د وښو نه ډک مېدان ، چراګاه

**ورشے** :- (و + ر + شے)(**فعل**) د ,,ورتلل ،، مصدر څخه د تمنائي ماضي ( واحد حاضر) فعل ، تۀ هلته يا هغۀ له لاړ شې.

**ورښ** :- (و + ر + خ/ش)(اس،مذ) يخ او تېز باد ،شمال ، سپکه هوا.

**ورښ** :- (و + ر +خ/ش)(اس،مذ) ورږ ، يال ، د اس د څټ وېښته.

**ورښتے** :- (و + ر + خ/ش + تے)(اس،مذ) بادام.

**ورښکه** :- (و + ر + خُ/ش + کَ) د ,,ورښکے ،، واحد دے .عموماً د جمعې په شکل کښې استعمالېږي.

**ورښکي** :-(و + ر + خ/ش + ک + ی)(اس،مو) تسمه د ټوکي اوږده پټه ، پټۍ.

**ورښکے** :- (و + ر + خ/ش + کے)(اس،مذ،ج ــکي) جمجمه ، وخکـے ، د خولې ګوټ۔د لړزې د تبې اولنے حالت ، سړه لړې۔

**ــــ تلل** :- د تبې لړزه نۀ پاتې کېدل۔

**ورښـودل** :- (و + ر + خو/شـو+ د + ل)(مصـدر) ورتـه ښـودل ، هغـه تـه ښـئيل ، ورته ښکاره کول ، ورزده کول۔تعليم ورکول۔

**ورطه** :- (و+ر + طه)(ع،اس،مو،ج۔طې) غولې۔ګرداب ،هلاکت ،د هلاکت ځاے ، مقام۔

**ورع** :- (و + ر + ع)(ع ،اس،مذ) پرهېزګاري ، زهد ، زاهدي۔

**ــــ کول** :- پرهېزګاري کول ، ځان له بدو ژغورل۔

**ورغ** :- (و + ر + غ)(اس،مذ،ج ــونه) ايمانداري ،همت ، هوش حواس۔

**ــــ الوتل** :- هوس حواس الوتـل ، ډېر سخت ګبراوېـدل ، حواس باخت کېـدل۔ هوس۔

**ورغاست** :- (و + ر + غا + س + ت) جوکوب۔ حمله ، ورټوپ کول۔

**ورغاستل** :- (و + ر + غا + س + ت +ل) دلول ، غټ غټ ټکول ، جوکوب کول۔

**ورغالے** :- (و +ر + غا +لے)(پ تر،اس ،مذ ،ج ــلي) اورغـالے ،نغرے ، اتـش دان۔

**ورغاندل** :- (د + ر + غا + ن + د + ل)(مص) دل کول۔

**ورغانے** :- (و + ر + غا + نے)(اس،مذ) خمبيره ، (چې پـه کلپـۍ کـښې د اوړو د خمبيره کولو دپاره ساتلے شي)۔

**ورغانے** :- (و + ر + غا + نے)(اس،مذ) هغـه مـالش چې د ماشوم د پېدا کېـدلو نه پس د ماشوم کولے شي۔ کُچ او خمير چې سره يو ځاے کړے شي او د ماشوم مالش پرې کولے شي۔

**ورغړ** :- (و + ر + غ + ړ)(اس،مذ ،ج ـــونـه) د اوبـو يـا د ولـې زوېـر۔د بهاندو اوبو ښکته طرف۔

**ورغړنه** :- (و + ر + غ + ړ + نَ)(اس ،مـذ ،ج ـــنې) د اوبښ يـا د خـر د زغړېـدلو ځاے

**ورغړے** :- (و + ر + غ + ړے)(اس،مذ ،ج ـړي) د اوبو تل۔

**ورغسـتل** :- (و + ر + غ + س + ت + ل)(مـص) ټکـول ، دل کـول ،يوغسـتلے (غزني)۔ ورغستلے له منځه وتلے۔(متل)۔

**ورغستلے** :- (و + ر + غُ +س +ت +لے)(اس ،مف،مـذ ،ج ـــلي) دل کـړے ، غـټ غټ ټکولے ، دل۔

**ورغښتے** :- (و + ر + غ + خ/ش + تے)(اس مذ) بادام ، ورښتے۔

**ورغـلـل** :- (و + ر + غ + ل + ل)(مـص) د ,,ورتلـل،، جـوړۍ مصـدر ۔ځيـنـې فعلونو ته د يو مصدر څخه او ځينې د بل مصدر څخه جوړېږي۔

**ورغلم** :- (و + ر + غ + ل + م)(فعل) د ,,ورتلل ،، مصدر څخه د ماضي مطلق (واحد متکلم) فعل ، زۀ هغۀ له يا هلته لاړم۔

**ورغلو** :- (و + ر + غ + لو)۔

**ورغو** :- (و + ر + غو)(فعل) د ,,ورتلل ،، مصدر څخه د ماضـي مطلق (جمـع متکلم) فعل ، مونږ هغۀ له يا هلته لاړو۔

**ورغلے** :- (و + ر + غ + لے)(فعـل) د ,,ورتلـل ،، مصـدر څخه د ماضـي مطلـق (واحد حاضر) فعل ، تۀ ورغلې تۀ هلته يا هغه له لاړې۔

**ورغومي** :- (و + ر + غـو + مي) د ,,ورغـومے ،، جمع ده ۔ د ,,ورغـومے ،، بـدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**ورغومے** :- (و + ر + غـو + مے)(اس ، مـذ ،ج ـــمي) د چېلـي يـا د بـزې بچـے ، چېلنګړے۔

**ورغـوے** :- (و + ر + غ + وے)(اس ،مـذ ،ج ـــوي) د لاس تلـے ۔د پښـې د تلـي دپاره هم استعمالېږي۔

**ورغۀ** :- (و + ر + غۀ)(اس،مذ) وراغ ، کارغۀ ، کاګه۔

**ورغۍ** :-(و + ر + غ + ۍ)۔

**ورغلۍ** :- (و + ر + غ + ل + ۍ)(فعل)د ,,ورتلل ،، مصدر څخه د ماضي مطلق فعل (جمع حاضر) ، تاسو هغۀ له يا هلته لاړئ۔

**ورغـۍ** :- (و + ر + غ + ۍ)(اس،مو) د چت هغـه تـور والے کوم چې د نغـري د لوګي په وجه په چت کښې پېدا شي۔د چت تورکے۔

**ورغـے** :- (و+ر + غـے)(فعل) د ,,ورتلل ،، مصدر څخه د ماضي مطلق (واحد غايب) فعل۔هغه هُۀ له يا هلته لاړ۔

**ورق** :- (و + ر + ق)(ع ،اس،مذ ،ج۔ونـه / اوراق) د کتـاب پاڼـه ، د ونې پاڼه۔د ګـل پـاڼګۍ ،د تـاش پاڼـه ۔ د سـرو زرو يـا د سـپينو زرو ډېـرې باريکـه ټکولې شوې پاڼې۔

**ـــــ الخيال** :- (ق + ل)+ خ + يا + ل)(ع،تر،اس،مذ) بنګ ، د بنګو د ونې پاڼه۔

**زر ــــ** :- ( ز + ر ـــ )( عپ تر ،اس،مذ ) د سرو زرو يا د سپينو زرو نه جوړه شوې هغه نرۍ او باريکه پاڼه چې عمومـاً پـه متياپـانو يـا د خـوراک په څيزونو لګولے شي۔په داروګاو کښې هم استعمالېږي۔ مجـازاً: سرۀ زر ، يا سپين زر۔

**ـــــ ساز** :-(ــــسا + ز )(عف تر ،اس،مذ ،مو ــــ ه) د سرو سپينو زرو ورقونـه جوړوونکے ، زر ورق جوړوونکے۔

**ـــــ سازي** :- (ــــسا +زي)(عف ، تـر،اس ، مـو) د سرو او سپينو زرو نـه د نرو پاڼو جوړولو کسب ، د زر ورق جوړولو فن۔

**ـــــ ورق** :- (ـــو + ر + ق)(صف) پاڼه پاڼه۔خوور وور شوے ، تس نس شوے

**ورقه** :- (و + ر + قَ)(اس ، مـع) د يـو رومـانې قيصـې هيـرو ، چې پـه ګـل شـاه باندې مئين وو۔

**ورقه** :-(و + ر + قَ)(اس،مو،ج ـــقې) د ورقه تـانيثي شکـل دے۔پښـتو کښـې هـم پـه دې شـکل کښـې د پاڼـه پـه معنـې کښـې استعمالېږي ۔ پاڼـه ، د کاغذ يوه تخته يا ټکړه۔

**دياداشتـــ** :- (ـــد ، يا + دا + ش + تـــ)(فپ ،تر،اس،مو) هغـه پاڼه چې څۀ ياداشت پرې ليکلے شوے وي۔د ډائرۍ پاڼه۔

**ورقي** :- (و + ر + قي)(عف ، تر ، صف) ورقونو والـه ، پـاڼو والـه ، پاڼـه پاڼـه ، لکه : ورقي سموسه۔

**ورک** :- (و + ر + ک)(صف،مذ،مو ــه) ګم ، محو ،ضائع۔

**ـــــ شه** :- (جمله) دفع شه ، زما د مخې نه لرې شه۔

**ـــــ شي** :- (جمله) د بد دعا په ځاے د زورنې او تنبيه په طور وايۀ شي۔

**ـــــ لارے** :- (ـــــلا+ رے)(پ تر، صف،اس،مذ ،ج ـري) هغه سړے چې لار ئې غلطه کړې وي بې لارې شوے ، ګمراه۔

**ـــــ مرغه** :- (ــــ م+ر + غَ)(پ تر،اس،مذ ،ج ـــان ) عنقـــا ، مشـــهور فرضي مارغۀ چې نوم ئې شته وجود ئې نشته۔

**ـــ مه شي** :- (جمله) دعائيه جمله ده ۔د تعريف او شاباسي په موقع وئيلے شي ۔مرګ دې نۀ وے ، مړ مه شې۔ زنانه د دعا په طور هم ائي ۔

**ـــ نومے** :- (ـــنو + مے)(پ تر ، اس ، صف ، مذ ، جي ـي) هغـه چې نـوم ئې ورک وي۔ګم نامه ، غېر مشهوره ، نوم ورکے۔

**ـــــ والے** :- (ـــــوا + لے)(پ تر،اس،مذ ) د ورکېدلو حالت ، ورکېدنه۔

**چېرتـه ـــــ شـوے دے** :- (جمله) چېرتـه پناه شـوے دے۔داسـې ځـاے کـښې دے يا داسې ځاے ته تلے دے چې ددغه ځاے نښه پته نشته۔

**په فکر کښې ـــــ** :- (پ ، في + ک + ر+کې ـــ)(پ تر) پـه فکـر کښـې ډوب ، پـه فکر کښې بوخت۔

**ورک** :- (و + ر + ک)(انګ ،اس ،مذ) کار ، عمل (عموماً نورو الفاظو سره راځي

**ــــ بُک** :- (ـــــبُ + ک) (انګ تر،اس،مذ،ج ـــونه) هغه کتاب چې په کښې د کوم ملازم د کار په حقله تفصيل ورکړے کېږي. د عمل کتاب.

**ورک مــانے** :- (و + ر + ک + مـا +نے) (پ تر،صـف،اس،ج ــنـي) خوشـحاله ، مسرور ، خوش خوشحاله.

**ورکاندې** :- (و + ر + کا + ن + دې) (فعل) د ,, ورکړې ،، يو پخوانے شکل. (په شعرونو کښې اوس هم استعمالېږي).

**ورکـانے** :- (و ر + کـا + ن + ړے) [ور+کـا+نې‌ئ] (پ تر،فعـل) د ,, ورکړئ ،، يـو پخوانے شکل.

**ورکاؤ** :- (و + ر + کا + ؤ) (حمص) (و ـــ ورکونه).

**ورکاوے** :- (و + ر + کـا + و ے) (اس،مذ،ج ـــوي) ورکېدنه ، غائبېدنه ، نهٔ پېدا کېدنه ،معدوميت.

**ــــ راتلل** :- ورکېدل ، غېبېدل ، نهٔ پېدا کېدنه.

**ورکـــر** :- (و+ر+ک +ر) (انـګ ،تر،اس،مـذ،ج ـــان) کـارکوونکے ،ملازم ، مزدور.

**ورکړ** :- (و + ر + ک + ړ) (اس ،مذ،ج ـــونه) پېش بـاده ، د جوار او د شـولو ، کامبوړے ، پکه.

**ورکړ** :-(و + ر + ک + ړ) (فعل) د ,, ورکول ،، مصدر نه د ماضي فعل.

**ورکړن** :-(و + ر ک + ړ + ن).

**ورکړنه** :- (ـــــــنَ) (پ تر ، اس ، مذ) (و ـــ ورکړه).

**ورکړونے** :- (و + ر + ک + ړو+ نے) (پ تر ، اس ، فا ، ج ـــ نـي) ورکوولـو والـه ، ورکوونکے.

**ورکړوني** :- (و + ر + ک + ړو+ نې) (پ تر ، صف) د ورکولو لايق ، د ورکولو. لکه : ورکړونې لوړ / خوړ.

**ورکړه** :-(و + ر + ک + ړ) (فعل) د ,,ورکولو ،، مصدر څخه د امر فعل.

**ورکړه** :- (و+ر+ک+ړ) (اس،مو،ج ــړې) ورکونه،داد ،خېرات،عطاکونه.

**ــــ کول** :- ورکول ، خېرات کول.بخښنه کول بخشش کول.

**ــــ راکړه** :- (ـــرا + ک + ړَ) (پ تـر ، اس ، مـو) ورکونـه او اخيستـنه ، لېن دېن ، معامله.

**ــــ راکړه کول** :- لېن دېن کول ، معامله کول.

**ورکړۀ** :- (و + ر + ک + ړ) (و ـــ ورکړه).

**ورکـړې** :- (و + ر+ک + ړې) (فعـل) د ,,ورکـول ،، مصـدر څخـه د ماضـي تمنائي فعل.

**ورکړئ** :- (و + ر + ک + ړ + ئ) (فعـل) د ,,ورکـول ،، مصدر څخه د امر جمع فعل. د ,,ورکول ،، مصدر څخه د تمنائي ماضي فعل (حاضر).

**ورکـړے** :- (و + ر + ک + ړے) (پ تر،اس،مف،ج ــړي) ورکړے شـوے ، هغه څيز چې (چاله) ورکړے شوے وي.په نوم شوے ، کوزده شوے.

**ورکزي** :- (و+ر+ک+زي) (و ـــاورک زي) د پښتنو د يوې لوئې قبيلې نوم.

**ورکشاپ** :- (و + ر + ک + شا + پ) (انګ،تر،اس،مذ،ج ــونه) د کـار دوکـان ، هغه ځاے چې په کښې مشينونه لګيدلي وي او د موټرو ، ګاډو يـا د نورو مشينونو مرمت په کښې کېږي. د کوم کار دپاره د تربيت ورکولو ځاے.

**ترميماتي ـــــ** :- (ت +ر+مي+ما + تي ـــ) (انګ،ف تر،اس،مذ) هغـه ځـاے چېرته چې د موټرو ګاډو وغېره ؤ مرمت کولے شي.

**دترميمولو ـــــ** :- (د ، ت + ر+مي+م + ؤ +لو ـ) (و ـــ ترميماتي ورکشات).

**ورکندے** :- (و+ر+ک+ن+دے) (پ تر ، صف ،مذ ،مو ـــ دي) ورکولـو والـه ، سخي ، ورکړه کوونکے. هغه چې له خپله هدفه بل خوا ته نهٔ ګوري.

**ورکوتي** :- (و + ر + کو + تي)د ,,ورکوټے ،، جمع ده.د ,,ورکوټے ،، بدل شکل چې د مغېره ؤ تورو سره راځي. لکه : د ورکوټي قد واله.

**ورکوزېدل** :- (و + ر + کو + زې + د + ل) (مص) ورته ښکته تلل. لکه : کوهي ته ورکوزېدل.يا د غرهٔ کوزېدل.

**ورکوزېدنه** :- (و + ر + کو + زې + د + نَ) (حمص) ورتـه ښکته کېدنه ، ورتـه کـوز تلنه.

**ورکول** :- ادا کول ، هغه ته ادا کول. خرڅول.

**برات ـــــ** :- (ب + را + ت ـــ) بري کول ، ازادول.

**تار ـــ** :- (تا + ر ـــ) د تار (ټيليګراف) په ذريعه خبر ورکول.

**ځان ـــــ** :- ((د) زا + ن ـــ) ځان د ګرفتارۍ دپاره (پوليس) ته وړاندې کول.

**دعا ـــ** :- (د + عا ـــ) دعا کول ، د چا دپاره دعا غوښتل.

**سر ـــ** :- (س + ر ـــ) سر قرباني کول ، سر ځارول.

**کُس ـــ** :- (کُ + س ـــ) بدکاري کول ، زنا کول. شرارت کول ، ورانے کول.

**کنه ـــ** :- (کُ + نَ ـــ) لواطت کول ، شېطانے کول ،ورانے کول ،شرارت کول.

**قرض ـــ** :- پور ورکـول ، څهٔ رقم وغېره عاريت ورکول. قرض ادا کول ، پـور ورکول.

**لاس ـــــ** :- (لا+ س ـــ) امداد کول ، مرسته کول ، اعانت کول.

**ننګان ـــــ** :- (ن + خا/شا+ ن ـــ) جنده ورکول ، د عزت ننګان ورکول. د فوځ يا د قام جنډه ورکول ، علم ورکول ، علم برداره کول.

**نيول ـــ** :- (ني + و + ل ـــ) ځان ورکول ، ځان نيولـو تـه پرېښـودل (عمومـاً پـه نفي کښې استعمالېږي) نيول نهٔ ورکول ، په قابو کښې نهٔ راتلل.

**ورکـول** :-(و + ر + ک + ؤ + ل) (مص) ګُم کـل ، بې درکـه کـول ختمـول ، نـوغے اېستل ، هېرول ، ضائع کول.

**پنجه ـــــ** :- زور ازمائي کول.

**لار ـــ** :- (لا+ ر ـــ) لار خطا کول ، لار هېرول .بې لارې کېدل ، ګمراه کېدل ، د لارې څخه بې درکه کېدل.

**نوم ـــ** :- شهرت خرابـول ، ښـهٔ نوم خراب مشـهورول .بېخي ورکـول ، نوغـے ورکول ، نيش کول.

**ورکونه** :- (و + ر ک + ؤ + نَ) (حمص) چاتـه څهٔ څيـز حوالـه کونـه ، داد کونـه ، بخښنه ، بخشش کونه ، ورکړه.

**ورکونه** :- (و + ر + ک + و + نَ) (حمص) ګُم کونه ، محو کونه ، ختمونه.

**ورکوونکے** :- (و+ر+ک +وو+ ن+ کے) (پ تر،اس،فا،ج ــ کي) ادا کوونکے ،بـل ته سپارونکے ، کنه ورکوونکے ، کُني.

**ورکوونکے** :- (و + ر + ک+ وو+ ن + کے) (اس ، فا ، مذ ، ج ـــ کي) ګُم کـوونکے ، بې درکه کوونکے ، ختموونکے ، نيست کوونکے ، نوغے يـا نـوم ننښـان ختموونکے ، ضائع کوونکے.

**ورکه** :-(و + ر + کَ) (فعـل) د ورکړه لنډيز شکل دے .د ,,ورکـول،، مصـدر څخه د امر فعل.

**ورکـوه** :- (و + ر + ک + و) (فعـل) د ,, ورکـول ،، مصـدر څخـه د امـر فعـل . (بازاري) د کنځلو په طور وئيلے شي يعني بدکاري کوه.

**ورکه** :- (و + ر + کَ) (صف،مو،ج ــ ورکې) د ,, ورک ،، تانيث دے . ورکـه مونده نشي بې رهبره بې سُراغه.

**ورکه** :- (و + ر + کَ) (فعل) د ,, ورکړه ،، بدل شکل دے.

**ــــ چپه** :- (ـــ چ + پ) زور ولګوه . (بازاري) يـوه اوازه ده چې بـازاري خلق د شرارت په موقع وائي.

**په ـــ پسې ګرځېدل** :- د ورک شوي څيز په لټون کښې ګرځېدل. د ورک شوي څيز لټون کول ، د داسې څيز لټون کـول چې هېڅ نخښـه ننښـانه ئې نهٔ وي معلومه.

**ورکې** :-د ,,ورکه،، جمع ـ د ,,ورکه،، بل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**ورکي** :- (و + ر + کي) (فعل) د ,,ورکړي،، لنډيز شکل دے ـ د ,,ورکول،، مصدر څخه شرطيه يا تمنائي فعل۔

**ورکئ** :- (و + ر + ک + ئ) (فعل) د ,,ورکړئ،، لنډيز شکل دے ـ د ,,ورکول،، مصدر څخه د جمع امر فعل دے۔

**ورکې** :- (و + ر + کې) د ,,ورکه،، جمع ده ـ د ,,ورکه،، بل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**په ـــ پسې گرځېدل** :- په ورک شوي څيز پسې گرځېدل، د ورک شوي څيز لټون کول، د نامعلومه کار په حقله کوښښ کول۔

**ورکېدل** :- (و + ر + کې + د + ل) (مص) گم کېدل، بې درکه کېدل، له نظره پناه کېدل۔ ختمېدل، نوغے نه پاتې کېدل۔نوم نښان نۀ پاتې کېدل۔ ضائع کېدل۔هېرېدل۔

**ځان ـــ** :- ((د) زا + ن ـــ) په غرور کښې راتلل، غاوره کېدل د خپلې کومې خوبۍ په وجه کبرجن کېدل۔

**گنه ـــ** :- (کُ + نَ ـــ) (و ـــ ځان ورکېدل)۔

**د ماشوړي سر ـــ** :- مجازاً: وار خطا کېدل، په چل نۀ پوهېدل، په تدبير نۀ پوهېدل، په سمون نۀ پوهېدل۔

**ورکېدنه** :- (و + ر + کې + د + نَ) (و ـــ ورکېدۀ)۔

**ورکېدونکے** :- (و + ر + کې + دو + ن+کے) (اس،مذ ،ج ـــ کي) هغه چې ورک شي بې درکه کېدونکے ـ ختمېدونکے، نه وتے کېدونکے، ضائع کېدونکے۔

**ورکېدۀ** :- (و + ر + کې +د ) (حمص) ورکېدنه، بې درکه کېدنه، ختمېدنه، نوم نښان وغېره نۀ پاتې کېدنه۔

**ورگ** :-(و + ر + گ) (اس ،جم) د حېوان دپاسه پشم، وړۍ ـ مجازاً: پوټکے، د وړۍ واله حېوان، پوستکے۔

**ورگ** :- (و + ر +گ) (اس، مذ ، ج ـــ ونه) يو کليز اوښ، د يو کال اوښ، پينځ کليز گډ، د پينځو کالو گډ۔

**ورگ** :- (و + ر + گ) (و ـــ ورډ)۔

**ورگډ** :- (و + ر + گ + ډ ) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) ورسره گډ شوے، شامل شوے، شامل، ملاؤ۔

**ورگډول** :- (و + ر + گ + ډ + ؤ + ل) (مص) ورسره گډول، ورسره شريکول، ورسره شاملول۔

**ورگډه** :- (و + ر + گ + ډَ) (پ تر ،اس،مو،ج ـــ ډې) د ,,ورگډ،، تانيث دے۔

**ورگډے** :- (و + ر + گ + ډ ے) (اس،مذ ،ج ـــ ډي) هغه چې په کوم کار وغېره کښې شامل شي ـ شاملېدونکے ـ هغه چې په هر کار کښې شاملېږي۔ مجازاً: بې احتياطه سړے۔

**ـــ کول** :- ورگډېدل، ورننه وتل۔

**ورگه** :-(و + ر + گَ) د ,,ورگ،، تانيث دے۔

**ورگه** :-(و + ر + گَ) د ,,ورگ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ د ,,ورگ،، عددلي جمع۔

**له ـــ وباسل /وېستل** :- د پوټکي څخه وېستل۔

**ورگے** :- (و + ر + گے) د ,,ورگه،، جمع ده ـ د ,,ورگه،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**د ـــ نه روگ وېستل** :- (و ـــ د ورډې نه وازده اېستل)۔

**ورگے** :- (و + ر + گے) (اس،مذ ،ج ـــ گي) وړه کړکۍ، روشن دان۔

**ورگينه** :- (و + ر + گي + نَ) (اس،مو،ج ـــ نې) د قلبې د څرمنې پړے ـ د ژغونې پړے۔

**ورل** :- (و + ر + ل) (مص) وروړل، وئيل، کول، ودرېدل۔

**باور ـــ** :- باور کول، اعتبار کول، اعتماد کول۔

**ورلښتے** :- (و + ر + ل + خ/ش + تے) (اس،فا ،ج ـــ تي) بادام۔

**ورلگېد** :- (و + ر + ل + گې + د) (اس،مذ) اورلگيت، د اور لگولو تيلے، د ماچس تيلے۔

**ورلول** :- (و + ر + ل + ؤ + ل) (مص) د حېوان بلاربول، د ماده حېوان (خره وغېره) حامله کول، تېرول۔

**ورله** :- (و + ر + ل) (حمص) بلاربونه، د ماده څناور (لکه خره وغېره) حامله کونه، حامله، بلاربه لکه: ورله اسپه۔

**ـــ کول** :- د ماده څناورحامله کول۔ بلاربول۔

**ـــ کېدل** :- د ماده څناور حمل اخيستل، بلاربېدل۔

**ورله** :- (و + ر + لَ) (صف، مو) د نيا، نيا۔

**ـــ انا** :- (ـــا + نا) د نيا، نيا ـ د مور د مور نيا۔

تـر شپېتو پـــورې ورله انا ده
ولې ورکړه ورکړه ورپسې پورې (خوشحال)

**ورلېدل** :- (و + ر + لې + د + ل) (مص) ورله کېدل، حمل اخيستل (د ماده څناور لکه خره وغېره) بلاربېدل۔

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب) (پ تر ،اس،مذ) ورله والے،حمل اخستنه ،بلارب والے

**ورم** :- (و + ر + م) (ع، مذ ، ج ـــ ونه) پړسوب، پاړسوب، اماس ـ د گذار وغېره په وجه بدن کښې د کوم ځاے راپړسېدنه۔

**ـــ کول** :- پړسوب کول، پړسېدل، پاړسوب کول، اماس کول۔

**ـــ کېدل** :- پړسوب کېدل ،پاړسوب کېدل ،پړسېدل۔

**ورم** :- (و + ر + م) (اس ،مذ ،ج ـــ ونه) نصيحت، پند،صلاح ،مشوره۔

**ورماگه** :- (و + ر + ما + گَ) (اس ،مو،ج ـــ گې) گنده دانه، مرداره دانه، د ماشومانو يوه بيماري چې په مخ ئې مرداري دانې راوخېژي۔

**ورماگۀ** :- (و + ر + ما + گۀ) د ,,ورمېگ،، بدل شکل دے۔(و ـــ ورمېږ)۔

**ورمړ** :- (و + ر + م + ړ) (اس،مذ) د پښتنو يوه مشهوره قبيله ده۔اورمړ۔

**ورمن** :- (و + ر + م + ن) (اس،مو،ج ـــ ورمنې) مېرمن، مالکه۔

**ورمندن** :- (و + ر + م + ن + د + ن) (اس،مذ ،ج ـــ ونه) نصيحت، پند، فرمان، حکم ،اطاعت، مننه۔ثواب، اجر۔

**ورمولے** :- (و + ر + مو + لے) (اس ،مذ) د ماشومانو يو مرض۔چې په کښې قې او دستونه پرې ولگي۔د پنير خام مايه۔

**ورمېږ** :-(و + ر + مې + گ /ژ) (اس ،مذ ،ج ـــ ونه) د مرۍ شاتنۍ برخه، څټ، سټ۔

**ـــ کړول** :- څټ يا مرۍ کړول، مجازاً: د غصې، کرکې يا د ناخوښۍ اظهار کول۔ څټ چاله اړول۔مرۍ کړول۔څټ ماتول۔

**ـــ ماتول** :- څټ ماتول ،مرۍ ماتول (د درونـد بار لـه کبلـه څټ يا مرۍ خوږېدل)۔

**ورن** :- (و + ر + ن) (اس،مذ ) د سېلاب ورنه۔

**ورن** :- (و + ر + ن) (اس،مذ ،ج ـــ ونه) تابوت، جنازه۔

**ورند** :- (و + ر + ن + د ) (صف ،مذ ،مو ـــ ه) ورېدونکے ،ورونکے۔

**ورنده** :- (و + ر + ن + د ) (پ تر ،صف) ورېدونکے ـ لکه: ورنده وريخ۔

**ورنده** :- (و + ر + ن + دَ) (اس،ج) هجوم، په گڼه حمله، حمله، يورش۔

**ورندے** :- (و + ر + ن + دے) (پ تر، صف ،ج ـــ دي) ورېدونکے، ورونکے۔

**ورنے** :- (و + ر + ن + ړے) [و+ر+نے] (اس،مذ ،ج ـــ ړي) اوډنے، د ماشوم نغښتلو کپړه۔ نر زوے په ورنې کښې معلومېږي (متل)۔

**ورنغلۀ** :- (و +ر +ن +غ +ل) (فعل) د ,,ورغلۀ،، منفي شكل ، د ,,ورغلل،، يا ورتلل مصدر څخه د ماضي (نفي) فعل دے۔

**ورنغله** :- (و +ر +ن +غ +ل) (فعل) د ,,ورغلۀ،، فعل منفي شكل دے چې د ,,ورتلل،، (په ورغلل) څخه د ماضي (غائب مؤنث) فعل دے۔

**ورنكے** :- (و +ر +ن +كے) (اس ،مذ ،ج ـ كي) د ورون هډوكے۔

**ورنګے** :- (و +ر +ن +ګے) (اس ، مذ ، ج ـــ ګي) د ,,ورون تصغير دے ۔ وړوكے ورون۔

**ورنګے** :- (و +ر +ن +ګے) (اس ، مذ) نرے نرے باران۔

**ورنونه** :- (و +ر +نو +نَ) (اس ، ج) د ,,ورون،، جمع ده۔

**ورنه** :- (و +ر +نَ) حرف ،د هغه نه ، د هغۀ څخه۔ د هغوي نه ۔ لكه : كتاب ورنه واخله۔

**ورنيكه** :- (و +ر +نې +كه) (پ تر ،اس ،مذ) د نيكۀ نيكه ، د پلار د پلار نيكۀ ۔

**وريد** :- (و +ري +د) (ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه) د مرۍ رګ ، شهرګ ، د بدن د هغو رګونو څخه يو رګ چې وينه د بدن نه زړۀ ته راولي۔

**وربشل** :- د وړوي يا د سپنسو تاوول۔مجازاً : بحث كول ،قيل و قال كول۔

**ورو** :- (و +رو) (اس ،مو ،ج ــ ګانې) د ,,جنج،، معنې لري برات ۔ (و ـــ ورا ـ)

**ورو** :- (و +رو) (تف) په قلار ، په ارام ، په مزه ۔ (د رفتار او اواز يا د كار ټولو دپاره راځي)۔

**ـــ تلل** :- د عام رفتار نه په مزه تلل۔ لكه : ګړي مې ورو ځي۔

**ـــ ځه** :- (ـــ (د) ز) (جمله) په قلاردرومه ، په مزه مزه قدم اخله۔

**ـــ كول** :- په قلاره كول ، په مزه كول ،رفتار يا اواز كمه ول۔

**ـــ كېدل** :- په مزه كېدل ، په رفتار يا اواز كنبې كمے راوستل۔

**وروځه** :- (و +رو +(د) زَ) (اس ، مو ، ج ـــ ځې) د سترګو د قولو دپاسه وېښتۀ ، ابرو ۔

**وروځې** :- (و+رو+ (د) زې) د ,,وروځه،، جمع ده ۔د ,,وروځه،، بدل شكل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**ـــ غوټه كول** :- تندے تريو كول ،دناخوښۍ يا د كركې اظهار كول۔

**ـــ وهل** :- په وروځو اشارې كول ، په ابرو سره اشارې كول۔

**په ـــ خبرې كول** :- د وروځو په اشاروخبرې كول۔ناز نخرې كول۔

**ورود** :-(و +رو +د) (ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه) وارد كېدنه ، راتلنه ، رارسېدنه ، دننه راتلنه۔

**ـــ باسعود** :- (ـــ (د) با +س +عو +د) (عف تر ، اس ، مذ) مباركه راتلنه ، راتلۀ مبارك ۔ (د چا بزرګ سړي د راتلو په حقله د عزت په طور وئيلے شي)۔

**ورور** :- (و +رو +ر) (اس ،مذ) برادر ، د پلار يا د مور زوے ۔ (جمع ئې ورونړه راځي)۔

**ـــ خور** :- (ـــ خو+ ر) (پ تر ،اس ،ج) برادر او خواهر ۔ مجازاً : يو قسم ، يو رنګ ، يو بل سره تړلي۔ لكه : غم شادي ورور خور دي۔

**ـــ مړے** :- (ـــ م +ړے) (پ تر، صف ،اس ،مذ ،ج ـــ ړي) هغه چې ورور ئې مړ شوے وي۔

**ـــ والے** :- (ـــ وا +لے) (و ـــ ورور ګلوي)۔

**سكه ـــ** :- (س +كَ ـــ) (پ تر ،اس ،مذ) هغه ورور چې د يو پلار او مور نه/څخه وي۔ (جمع : سكه ورونړه)۔

**مېرنے ـــ** :- (مې +ر +نے ـــ) (پ تر ،اس ،مذ) هغه ورور چې د پلار د بلې ښځې نه وي۔هغه ورور چې پلار ئې يو خو مور ئې بېله وي۔ (جمع : مېرني ورونړه)۔

**خپل ـــ** :- (خ +پ +ل ـــ) (و ـــ سكه ورور) (جمع : خپل ورونړه)۔

**ديني ـــ** :- (دي +ني ـــ) (فپ ،تر ،اس ،مذ) هغه ورور چې اصلاً د پلار ، د مور زوے نۀ وي۔بلكه د دين په رشته ورته ورور وئيلے شوے وي۔

**د ـــ غوښې خوړل** :-د بل مسلمان غيبت كول ، د چا پشې شا بد وئيل۔

**ـــ كول** :- چاته ورور وئيل۔چا ته ورور ورور وئيل۔ چې ورور ئې نۀ كې سور به ئې به څۀ كې ۔ (متل)

**وروركے** :- (و +رو +ر +كے) (پ تر ،اس ،مذ ،ج ـــ كي) د ورور تصغير دے ۔ وړوكے شان ورور۔ (عموماً د مخاطبې په وخت كشر ته وئيلے شي)۔

**وروركے** :- (و +ر +ؤ +ر +كے) (پ تر ،اس ،مذ ،ج ـــ كي) اور اوركے ، مشهور الوتونكے چينجے چې د شپې رڼاكوي۔اوربلک ، سراب ، په صحرا كنبې د شګو هغه مېدان چې د لرې نه د اوبو په شان ښكارې۔

**وروړے** :- (و +رو +ړے) (و ـــ وروريه)۔

**وروريه** :- (و +رو +ري +يَ) (اس ،مذ) د ,,ورور،، په ځاے د مينې نه وائي۔

**وروري** :- (و+رو+ري) (پ تر ،اس ،مو) د ,,ورور،، ولې تعلق۔

**ـــ خوري** :- (ـــ خو +ري) (پ تر ،اس ،مو) د ورور او د خور په شان تعلق ، د ورور او خور په شان مينه محبت ۔ وروري خوري به كوؤ ، خو حساب تر مېنځه ۔ (متل)۔

**وروړل** :- (و +ر +و +ړ +ل) (مص) ورته / ورله وړل ، ورنږدې كول ، مس كول۔

**ګوتې ـــ** :- (ګو +تې ـــ)۔

**لاس ـــ** :- (لا+ س ـــ) ګوتو سره مس كول ، د كوم څيز د را اخيستلو كوښښ كول۔

**وروزه** :- (و +رو +زَ) (فعل) د ,,روزل،، مصدر نه څخه د امر فعل وپالـه ، پالنه (ئې) وكړه۔

**وروږ** :- (و +رو +ګ / ژ) (اس ،مذ ،ج ـ ونه) د كچه خرمني تسمه۔

**وروست** :- (و +رو +س +ت) زوړ ، داسې زوړ شوے څيز چې په اسانه شلېږي ۔د زوړ والي له كبله زر او په معمولي زور شلېدونكے (عموماً د ټوكې يا جامو وغېره په حقله استعمالېږي)۔

**ـــ كول** : (و ـــ وروستول)۔

**ـــ والے** :- (ـــ وا +لے) (پ تر ،اس ،مذ) د وروستو كېدلو حالت ،كمزورے او زر شلېدونكے حالت۔

**وروستاړے** :- (و +رو +س +تا +ړے) (پ تر ،اس ،مذ ،ج ـــ ري) دُمچې۔

**وروستلے** :- (و +رو +س +ت+لے) (پ تر ،اس ،ظر ،ج ـــ لي) وروستے ، روستے۔

**وروستنے** :- (و +رو +س +ت +نے) (پ تر ،اس ،صف ،مذ ،ج ـــ ني) د بل كس يا څيز نه شاته يا وروستو ۔لكه وروستنے ګاډے۔ اخري ، د ټولو نه وروستو

**وروستنۍ** :- (و +رو +س +ت +ن +ۍ) (پ تر ،صف ،اس ،مو) د ,,وروستنے،، تانيث دے۔ لكه : وروستنۍ خبره۔

**ـــ ورځ** :- اخري ورځ ، د قيامت ورځ۔

**ـــ پوهه** :- (ـــ پو +هَ) (پ تر ،اس ،مو ،ج ـــ هې) هغه پوهه چې په اخره كنبې راشي هغه عقل چې د موقعې څخه وروستو مغزو ته راشي۔

لـه قامـه لاړ شوم لرې په كروهه

مالي ارمان دے وروستنۍ پوهه (خوشحال)

**وروستني** :- (و+ رو+س+ت+ني) (اس ،مو) د څپلۍ شاتنۍ پټه يا تسمه۔

**ـــ خلك** :- (ـــ خ +ل +ك) ۔تېرشوي خلك۔

**ـــــ قومونه** :- (ـــ قو + مو + نَ) (ف پ تر ، اس، مذ ،ج) وروستو راتلونکي قومونه.

**وروستو** :- (و + رو + س + تو) (اس،ظر) شاته ، د بل څيز شاته ، په عقب کښې ، په دنبال کښې ، بعد . انګي مل دي څوک دے د ټولو وروستو.(د لوبې وايـهٔ)(د ځـاے او وخت دواړو دپـاره راځـي) ځينــې وخت د راتلونکي وخت دپاره هم استعمال شي . لکه : د وروستو / وروسته دپاره . يعني مخې له ، بيا ، د راتلونکي وخت دپاره .

**د ـــ دپاره** :- (د ـــ د + پا + ر) د بيا دپاره ، مخې که ، ائنده دپاره .

**ـــ کول** :- شاته کول ،د خپل مقام ځاے نه شاته کول ، د خپل وخت نه شاته کول لکه : ګړی مې شل منټه وروستو کړه .

**ـــ کېدل** :- شاته کېدل ،د يو مقام يا ځاے نه شاته کېدل .د خپل وخت نه شاته کېدل ، لکه : ګړی مې شل منټه وروستو شوې ده .

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے)(پ تر ، اس ، مذ ) د وروستو شا شاته پاتې کېدلو حالت .پس ماندګي .

**ـــ وروستو کېدل** :- شا شاته کېدل ، مخکښې نهٔ راتلل د کوم کار نه ډډه کول .

**وروستول** :- (و + رو + س + ت + ؤ + ل)(مص) وروست کول ، ورستول ، زړول ،بوسيده کول ، را ـ زړول چې په معمولي زور سره شلېږي .

**ـــ نه کتل** :- شاته نه کتل ، تبنتېدل ، داسې تبنتېدل چې شاته نهٔ کتل . د ماضي خيال په زړهٔ کښې نهٔ راوستل .

**ـــ وړاندې کېدل** :- (و ـــ وړاندې وروستو کېدل ).

**وروسته** : (و + رو + س + تَ)(و ـــ وروستو)(نور الفاظ هم د ،،وروستو ،، تر لاندې وګورئ).

**ـــ اچول** :- مؤخر کول ، وروستو کول .

**ـــ تر** :- (ـــ ت + ر )(پ تر ،اس،ظر ) له .... نه وروستو يا پس ، لکه : وروسته تر اجلاسه .

**په ـــ** :- (پ ـــ) وروستو ، پس ، بعد .لکه : له يوې مياشتې په وروسته .

**ـــ کول** :- (و ـــ وروستو کول ).

**ـــ کېدل** :- (و ـــ وروستو کېدل ).

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے)(پ تر ،اس،مذ ) شاته پاتې کېدنه ، پسماندګي .

**وروستے** :- (و + رو + س + تے)(و ـــ وروستنے ).

**ـــ پاتې** :- هغه خلق يا ملک چې د نورو اولسونو څخه (په ترقۍ وغېره کښې) شاته پاتې شوي وي .پسمانده .وروستو يا باقي پاتې شوے .

**په ـــ کلونو / زمانو کښې** :- په تېرو شوؤ کلونو يا زمانو کښې .

**ـــ عقل** :- (ـــ ع + ق + ل)(پ تر ،اس،مذ) هغه عقل يا پوهه يا احساس چې د څهٔ غلط کار د کولو نه پس بـه راشي . (کـه وروستے عقـل رونبے وے)(متل).

دريغه دريغه که وروستے عقل ورومبے وے

د انجـام خبـرې نـهٔ شـي پـه اغاز (رحمان بابا )

**وروستي** :-(و + رو + س + تي) د ،،وروستے ،، جمع ده . د ،،وروستے ،، بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي .

مخکښې د وروستي پل وي .(متل).

**وروستۍ** :- (و + رو + س + ت + ی)د ،،وروستے ،، تانيث دے .

**ـــ ورځ** :- (ـــ و + ر (د) ز )(پ تر ،اس،مو) اخري ورځ ،اخيرنۍ ورځ ، مجازاً : د قيامت ورځ .

**وروستېدل** :- (و + رو + س + تې + د + ل)(مص) ورستېدل ، وروستو کېدل . زړېدلو لـه کبلـه کمزورے او زر شلېدونکے کېدل .(عموماً د ټوکي جامې وغېره په حقله وائي).

**وروستيمبال** :- (و + رو + س + تي + م+با+ل)(پ تر ،اسم / ظر) په اخري سر کښې ، د ټولو نه وروستو ، په اخري مرحله کښې . لکه : په وروستيمبال کښې .

**وروغ** :- (و + رو + غ) وراغ ، کارغهٔ ، کارګهٔ .

**وروک** :-(و + رو + ک)(و ـــ ورک ).

**ورول** :- (و + ر + ؤ + ل)(و ـــ اورول ).

**ورول** :- (و + ر + ؤ + ل)(مص) اورول ، د باران په شان لړ لړ په بنکته راغورزول ، (ف ـ باريدن ).

**باران ـــ** :- (با + را + ن ـــ) باران کول .

**واوره ـــ** :- د باران نرې واوره شوي پترې راکيښل کول ، برف باري کول .

**ورون** :- (و + رو + ن)(اس ، مذ ) د زنګونه نه بره د پښې حصه .پتون (جمع ئې (ورنونه ) راځي ).

**ـــ وهل ، چاته** :- پتون ټپول ، د کُشتۍ مقابلې دپاره چېلنج ورکول . مطلق د مقابلې چېلنج ورکول .

**وروڼه** :- (و + رو + ڼه)(ا س،مذ ،ج ) د ،،ورور ،، جمع ده .

**وروڼے** :- (و + رو + ڼے)(اس،مذ ،ج ـــ ڼے) اوربڼے ، اوږڼے .د ماشوم د نغښتو لوے رومال .

**وروور** :- (و + ر وو + ر)(اس،مذ ،ج ـــ ونه) لاتدے ،وچه کړې غوښه ، پرسنده (کاکړ) وَرْوَرْ ، د ناوې جهيز .

**ورهٔ** :- (و + ر) د ور (در) بدل شکل دے . ځينو مغيره ؤ تورو سره راځي .

**ـــ په ورهٔ** :- (ـــ پ ، و +ر)(پ تر ،اس،ظر) ور په ور ، همسايه .

**ـــ په ور کېدل** :- همسايه کېدل .

**ورهسته** :-(و + ر + هـ + س + ت)(و ـــ ورهيسته ).

**ـــ کول** :- (و ـــ ورهيسته کول ).

**ورهمه** :- (و + ر + هـ + م) د ،،ورهم ،، جمع ده .د ،،ورهم ،، بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي .

**له ـــ** :- (ل ـــ) ناڅاپه .

**ورهڼه** :- (و + ر + هـ + ڼه)(اس،مو) کار ، کسب ، شغل .

**ورهول** :- (و + ر + هـ + ؤ + ل)(مص) ازادول ، رها کول .

**ورهولے** :-(و + ر +هـ+ و+لے)(پ تر ، اس ، مف ، مذ ، ج ـــ لي) ازاد کړے ، رها کړے

**ورهونے** :- (و + ر + هو + نے)(پ تر ، اس ، فا ، مذ ، ج ـــ ني) رها کوونکے ، ازاد کوونکے .

**ورهونکے** :- (و+ر+هو+نِ+کے)(پ تر ،اس،فا ،مذ ،ج ـــ کي)(و ـــ ورهونے).

**ورهونه** :- (و + ر + هو + نَ)(حمص) رها کونه ، ازادونه .

**ورهېدل** :- (و+ ر + هې + د + ل)(مص) ازادېدل ، رها کېدل ، ازادي موندل .

**ورهېدنه** :- (و+ر + هې + د + نَ)(حمص) رها کېدنه ، ازادېدنه ، ازادي موندنه

**ورهيسته** :- (و + ر + هي +س + ت)(پ تر ، اس ، ظر) ور هغه خوا ، ورته نژدې ، هغه ته نژدې .

**ـــ کول** :- هغه ته يا هغې خواته نژدې کول ،هغه طرف ته ديکه کول .

**ـــ کېدل** :- هغې خوا ته کېدل ، کوم څيز يا سړي ته ورنژدې کېدل .

**ورهېدونے** :- (و + ر + هې + دو + نے)(پ تر ،اس،فا ،ج ـــ لي) رها کېدونکے ، ازادېدونکے و رهائي موندونکے .

**ورهېدونکے** :- (و+ ر + هې + دو+ نِ+ کے)(و ـــ ورهېدونے ).

**ورئ** :- (و + ر + ئ)(پ ، اس ، مو ) بار ، ګېډے ، ورے . د ډېرو لرګي د يو ورئ .(متل).

**ورئ** :- (و + ر + ئ) په خولهٔ کښې هغه کلکه غوښه چې غابښونه په کښې

لګېدلي وي۔ نوک سره جخته غوښه ، اورۍ۔

د نوک نه اورۍ نهٔ بلېږي۔ (متل)۔

**وري** :-(وُ + ري) (فعل) د ,,ورېدل،، مصدر نه د حال فعل۔ورېږي۔

**ورے** :- (و + رے) (اس ، مذ، ج ــ ري) بار ، بوج۔

**ـــ اچول** :-بار اچول ، باروَل ، باري کول۔

**ـــ وړل** :- بار وړل ، بوج وړل۔

زور د چـــــج د وړلو نـه لـري نهٔ نادانه

نهٔ پوهېږم چې دا دروند ورے په چا وړي (خوشحال)

خرې ته ئې وې چې کوچے دے ؟ وې خپـل ورے به وړي خپل به ورمـه (متل)۔

**ورے** :- (و + رے) بره ، ګډورے۔د اسمان په دولسو برجونو کښې د یو برج نوم۔ حمل۔

**ورے** :- (وُ/وو + رے) (اس ، صوت) د ګډو بزو د شړلو اواز ۔

**وريا** :- (و + ر + یا) (اس ، مو) باران۔

**وريا** :- (و + ر + یا) (اس ، مو) ژۍ / جی ، کناره ، غاړه ،حاشیه۔

**وريپر** :- ((و) + ري + پ + ر) (انګ ، اس ، مذ ، ج ــــ ونه) هغه کاغذ وغېره چې په کښې څهٔ څیز نغښتے شي۔

**وريت** :- (و + ري +ت) (صف ،مذ) په اور بریان شوے ، بریان (مؤنث ئې ,,وَرِته،، راځي او جمع ئې ,,وراتهٔ،،)۔

**وريت** :- (و+ري+ت) (صف،مذ،مو ــ) نمایانه ، ښکاره ، څرګند ۔

که دلبر په ما ډېر رحم عنایت کا

ښـــائسته مخ به وماته وريت کا (دولت)

**ـــ پيت** :- (ـــ پي + ت) (پ تر ،صف) ښېخي وريت شوے ، بالک سوے کباب شوے ، سوې نیمه شوے ۔هغه چې د حسد وغېره لـه کبلـه ئې زړهٔ ته ډېر سخت تاؤ رسېدلے وي۔ (ددې جمع ,, وراتهٔ پاتهٔ ،، راځي)۔

**وريته** :- (و + ري + تَ) (پ تر ،اس ،مو، ج ـــ تې) کباب شوے ، ورتـه کړې غوښه وغېره ، کباب۔

**ـــ کول** :- غوښه په اور باندې سره کول ، ورته کول۔

**ـــ کېدل** :- وراتهٔ کېدل ، ورتېدل ، کباب کېدل۔

**ـــ ګر** :- (ـــــ ګ + ر) (پ تر ،اس،مذ ،ج ـــ ان) کباب جوړوونکے ، کبابي ۔ کبابي ، په اور سرې کړې تیکې جوړوونکے ، سیخ کباب جوړوونکے ۔

**د سيخونو ـــ** :- (د ، سي + خو + نو ـــ) (پ تر ، اس ، مو) د غوښـې تیکـې چې په انګار باندې سرې کړے شي۔سیخ کباب۔

**وريتـول** :- (و + ري + ت + ؤ + ل) (مص) پـه اور بانـدې سـور کـول ، ورتـول ، کباب کول، غوښه په اور سره کول۔په بټ یا تبخي وغېره د دانو وغېره سره کول، نیني کول۔سخت تاؤ ور رسول ، ډېر دړد یا دوک ورکول۔

**وريتول** :- (و + ري + ت + ؤ + ل) (مص) ښکاره کول ، څرګندول ، نمایانه کول

**وريتوونکے** :- (و+ري+ ت + وو + ن + کے) (پ تر ،اس،فـا ،ج ــ کـي) ښـکاره کوونکے ، څرګندوونکے ، برښېره کوونکے۔

**وريتوونکے** :- (و + ري + ت + وو+ن + کے) (پ تر ،اس ،فا ،مذ ،ج ــ کي) پـه اور باندې سور کوونکے ۔کباب کوونکے ، په بټ یـا پـه تبخي سور کوونکے ، نیني کوونکے ۔سخت تاؤ رسوونکے ، ډېر دړد رسوونکے ۔

**وريتېدل** :- (و + ري + تې + د + ل) (مص) وریت کېدل ، پـه اور بانـدې سُور کېدل، کباب کېدل ، د غوښې یـا د غوښې د تیکو پـه اور باندې سرې کېدل۔ په تبخي یا بټ کښې د دانو وغېره سرهٔ کېدل۔نیني کېدل۔ ډېر سخت تاؤ رسېدل ، ډېر دړدمند کېدل۔

**په بيلتون کښې ـــ** :- د محبوب په جدایي کښې داسې ژوند تېرول لکه چې په ور باندې پروت وي۔

**وريتېـدل** :- (و + ري + تـې + د + ل) (مـص) ښـکاره کېـدل ، نمایانـه کېـدل ، څرګندېدل۔

**وريتېدنه** :- (و+ري+ت+د+ نَ) (حمص) ورتېدنه ، وریت کېدنـه ، پـه اور بانـدې یا په تبخي یا په بټ کښې سُور کېدنه۔

**وريتېدهٔ** :- (و + ري + تې + د) (و ـــ وريتېدنه)۔

**وريجـه** :-(و + ري + جَ) (اس ، مـو) مشـهوره غلـه ۔(اُر ـــ چـاول) (عمومـاً د جمعې په شکل کښې استعمالېږي)۔

**وريجې** :- (و + ري + جې) (اس ، جم) د ,,وريجـه،، جمـع ده ۔مشـهوره غلـه (اُر ـــ چاول)۔

**ـــ غوښې** :- (ـــ غ + و + خې / ښې) (پ تر ،اس ،جم) هغه وريجې چې په غوښه کښې پخې کړے شي۔شولې۔

**ايښېدلې ـــ** :- (اې + ښې + د + لې ـــ)۔

**يښېدلې ـــ** :- (ي + ښې + د + لې ـــ) (پ تر ،اس ،جم) هغه وريجې چې د اول نه ورله جوش ورکړے شوے وي او بیـا د پخولـو پـه وخت پرې ډېـر لږ وخت لګي۔

**غټې ـــ** :- (غ + ټې ـــ) (پ تر ، اس ، جم) د وریجو یو کم قیمته قسم ۔ غټې وريجې چې غوښې سره پخې کړے شي۔شولې۔

**نرۍ ـــ** :- (ن + ر +ۍ ـــ) (پ تر ،اس ،جم) د وریجـو یـو خـاص قیمتـي قسم چې دانې ئې نرۍ او اوږدې وي۔

**وريجينه** :- (و + ري + جي + ن) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ نې) هغه ډوډۍ چې په اوړو کښې د وريجو اوړهٔ هم ګډ کړے شوي وي۔

**وريځ** :- (و + ري + (د) ز) (و ـــ وريخ)۔

**وريځ** :-(و + ر + ي + (د) ز) (اس ،مو ،ج ـــ ځې) ابر ، هغـه سـپين بـړاس چې باران وروي۔ (اُر ـــ بادل)۔

**ـــ ده** :- (جمله) په اسمان کښې وريځ خوره ده۔اسمان خړ دے۔ مجازاً: موقع د خطرې ده۔یا د راز خبرې مه کوه۔بل څوک اوریـدونکے ئـې هم موجود دے۔

**وريځه** :- (و + ري + (د) زَ) (و ـــ وريځ)۔

**وريځې** :- (و + ري + (د) زې) د ,,وريځه،، جمع ده۔

**وريځې** :- (و + ر + ي + (د) زې) د ,,وريځ،، جمع ده۔

**ورېـدل** :-(و + رې + د + ل) (مـص) اورېـدل ، (ف : باریـدن) د بـاران یـا د ږلۍ راکیښ کېدل۔

**ورېدونکې** :- (و + ر + ې + دو + ن + کې) (پ تر ،اس ،فا ،ج ــ کي) هغه ,,وريځ،، چې باران وروي۔ باران کوونکې (وريځ)۔

**ورېرونـه** :- (و + رې + رو + نَ) (پ تـر ،اس ،ج) د ,,ورارهٔ،، جمـع ده ۔د ورور زامن، برادر زادګان۔

**وريره** :- (و + رې + رَ) (پ تر ،اس ،مو ، ج ـــ رې) د ورور لُور ۔(ځینې خلق ئې جمع ورېرې ګاڼي هم کوي)۔

**ورېږ** :- (و + رې + ږ) (اس،مذ ،ج ـــ ونه) تمبه هغـه لـرګے چې د دروازې شاته اړمولے شي۔

**ورېږن** :- (و + رې + ږ + ن) (اس،مو) هغه وړۍ چې صفا شوې او هواره شوې وي۔چې بیا ددې نه مختلف څیزونه جوړولے شي۔

**وريزه** :- (و + ري + زَ) (اس،مو، ج ـــ زې) زن طلبګار ، ښځه غوښتونکې۔

**وريز** :- (و + ر + ي + ز) (و ـــ وريځ)۔

**وريزے** :- (و + ر + ي + زے) (و ـــ وريځې)۔

**وريژون** :- (و + ري + ژو + ن) (پ تر ،اس ، مذ) اوربښت ، وربدنه۔

**وريـژون** :- (و + ري + ژو + ن)(پ تر ،اس ،مـذ ) دل کـړي يـا ريـزه ريـزه کـړي ځيزونه ـ ميده کړي يا بڅري کړي ځيزونه ـ

**وريژې** :-(و + ري + ژې)(و ـــ وريجې) ـ

**وريسل** :- (و + رې + س + ل)(و ـــ وريښل) ـ

**وريسنه** :- (و + رې + س + نَ)(و ـــ وريښنه) ـ

**وريش بر** :- (و + رې + ش + ب + ر )(پ تر ، اس ، مذ ) اذوقه ، ازوغه ـ

**وريښـل** :- (و + رې + ش + ل )(مـص ) ريښـل ، د وريځ څخـه پـه تـاؤولو تارونـه جوړول ـ

**وريښنه** :- (و + رې + ش + نَ)( حمص ) د وريځ څخـه پـه تـاؤولو تارونـه جوړونـه د وريځ تاؤونه ـ

**وريښون** :- (و + رې + شو + ن)(و ـــ وريښنه) ـ

**وريښـون** :- (و + رې + شـو + ن)(اس ،مـذ ) وريښـنـه ، د وريښـلو كـار ،ميرث ، متروكه ـ

**وريښـه** :- (و + رې + شَ)(اس ،مـو ) حلـوا ،د خبـرات برخـه ، د جمعـې د شـپې هغه خبرات چې مړي پسې كولے شي ـ

**وريښۀ** :- ( و + رې + ش)(و ـــ وريښنه ) ـ

**وريښكه** :- (و + ري + خ/ش + كَ)(اس ، مـو ) غـنم چې نـوے را ټوكېـدلے وي ـ سويد ،خيد ـ

**وريښكۍ** :- (و + رې + خ/ش + ك + ئ)(اس ، مو ) ريښه ، د ټوكي كمـه پلنـه او ډېره اوږده ټوټه يا پټه ـ د ښځې شاتنے بند يا پټه ـ

**وريښكے** :- يو جلبے ، هرېشكے ـ

**وريښم** :- (و+رې+خ/ ش + م)(اس ، جم ) ريښم ، ريشم ، ابريشم ـ

**ـــ بوټے** :- (ـــ بو+ ټے)(پ تر ،اس ،مذ ،ج ـ ټي) يو قسم بـوټے دے چې د ريښمو په شان پوس او بوده وي ـ او سپين ګلونه كوي ـ

**ـــ چينجے** :- (ـــ چي + ن + جے)( پ تـر ، اس ، مـذ ، ج ـــ جي) هغـه چينجے چې ريښم پيدا كوي ـ د ريښمو چينجے ـ

**اومۀ ـــ** :-(او + مـۀ ـــ)(پ تـر ، اس ، جم ) هغـه وريښـم چې لاكچـه وي ـ پـه يشولو پاخۀ شوي نۀ وي ـ

**وريښمو** :- (و + رې + خ /ش + مـو ) د ,, ريښـم ،، بدل شكل چې دمغيـره ؤ تـورو سره راځي ـ

**د ـــ چينجے** :- (د ـــ چي + ن + جے )(پ تر ،اس ،مـذ ، ج ـــ جي ) هغـه خـاص چينجے چې وريښم جوړوي ـ

**د ـــ چينجو روزنه** :-(پ تر ،اس ،مو ) د ريښمو د چينجو پالنه او ساتنه ـ

**ـــ وبستل / ابستل** :- د ريښمو د چينجي د ځان نه ريښم پيدا كول ، چې بيـا ئـې د ځان نه تاووي ـ

**وريښمين** :- (و+رې+خ/ش+مي+ن)(پ تر ،صف ،مـذ ، مـو ـــ ه ) د ريښـمو نـه جوړ شوے ـ د ريښمو په شان نرم او پوس ـ

**وريښمين** :- (و+رې+خ/ش+مي+نَ)(پ تر ،صف ،مو ،ج ـــ نې) د ,, وريښـمين ،، تانيث دے ـ معشوقه ، محبوبه ـ

سپينه خولۀ ، برقع ئې سپينه

بائيسكوپ له ځي وريښمينه (غاړه)

**وريښه** :-(و + رې + خ/شَ)(اس ،مـو ، ج ـ ښې ) د مـړي پسـې دجمعـې د شـپې خبرات ـ حلوا ـ

**وريغ** :- (و + رې + غ)(اس ،مذ ،ج ـــ ونه ) رنګ ـ

**وري غوږ** :- (و + ري + غ + و + ګ/ ژ)(پ تر ، اس ، مذ ) يو قسم بوټے دے ـ

**وريـن** :-(و + ري + ن)(صـف ،مـذ ، مـو ـــ ه ) وروڼ ، روښـانه ، پرانسـتے ، بـې ګرونجو ، هوار ، خنده رويه ، روڼ تندي واله ـ

**ځان ـــ كول** :- ځان خنده رويه كول ، مصنوعي خندا كول ـ لكه : هغه پـه ظاهره ورته ځان ورين كړے او بل ئې بنۀ حال دے ـ

**ـــ تنـدے** :- (ـــ ت + ن + دے )(پ تر ،اس ،مـذ ،ج ـــ دي ) روڼ تنـدے ، پرانستے تندے ـ

**په ـــ تندي** :- (پ ـــ ت + ن + دي ) په روڼ تندي ، په پرانستي تندي ، پـه صفا تندي ، په خوشحالي ـ

**وريـنج** :- (و+رې + ن + چ )(انګ ،اس ،مذ ،ج ـ ونـه ) يـو الـه چې غټ مېخونـه وغيره پرې نيولے او تاؤلے شي ـ اينچ، (پـه پښتـو د سر واو نۀ وئيلے كيږي) ـ

**وريندار** :- (و + رې + ن + دا + ر )(پ تـر ،اس ،مـو ) ورنـدار ، د ورور ښـځه ، بابي ـ (جمع ئې ,, وريندارياني ،، يا ,,وريندارګانې ،، راځي) ـ

**وريـنـدارے** :- (و + رې + ن + دا + رے) د وريـنـدار منـادائي شـكل دے ـ دخطاب په خوب وئيلے شي ـ اے ورندار ! اے ورنداري ، د ,, وريندار ،، بـدل شـكل دے ځينې وخت مغيـره ؤ تـورو سره راځـي ـ لكـه : د ورنداري كالي ـ

**وريـنګے** :- (و + ري + ن + ګے )(اس ،مذ ،ج ـــ ګي ) نرے نرے باران ، پشم ، پونه ـ

**ورينه** :- (و + ري + نَ)(پ تر ،صف ،مو ،ج ـــ نې ) د ,, ورين ،، تانيث دے ـ

**وريـنے** :-(و + ري + نے)(اس ،مذ ،ج ـــ نې) خوشحاله ، خوش و خرم ، مسـرور ، ښاد ، شادمان ـ

**وريو** :- (و + ري + يـو ) د ,, وري ،، بـدل شـكل دے چې د مغيـره ؤ تـورو سـره راځي ـ لكه : د وريو پوستكي ـ

**ورئيز** :- (و + ر + يئ + ز )(پ تر ،اس ، صف ، مذ ، مـو ـــ ه ) هغـه كسان چې د ناوې د راوستلو دپاره ځي ـ ورابانړے ـ

**ورئيزه** :- (و + ر + يئ + زَ)(پ تر ،صف ، ج ـــ زې) هغه ښځه چې په عام رسم دود وادۀ نشي او په عامو جامو كښې د مېړۀ كره لاړ شي ـ

**وړ** :- (وُ + ړ ) د ,, ووړ ،، لنډيز شكل دے ـ وړوكے ـ

**وړ** :- (و + ړ)(و ـــ وړا ) ـ

**وړ** :- (و + ړ)(صف ) لايق ، مناسب ، قابل ، شايان ـ

**ـــ تـوب** :- (ـــ تـو + ب)(پ تر ،اس ،مـذ ) لياقـت ، اهليـت ، سزاواري ، قابليت ـ

**ـــ تيا** :- (ـــ ت + يا )(پ تر ،اس، مو )(و ـــ وړتوب) ـ

**ـــ كول** :- لايق كول ، سزاوار كول ، قابل ګرځول ـ

**دا ـــ ده** :- دا مناسب دي ، دا غوره خبره ده ـ دا سزاوار ده ـ

**ـــ ,, بودل ،،** :- لايق ,, بودل ،، مناسب ,, بودل ،، د شانه سره سم ,, بودل ،، ـ

**ـــ كېدل** : لايق ګرځېدل ، مناسب حال كېدل ، سرزاوار كېدل ، د شان سره سم ګرځېدل ـ

**ـــ نوم** :- (ـــ نو + م )(پ تر ،اس ،مذ ) لقب ـ

**وړ** :- (و + ړ)(اس ، مـذ ) د غټـو تنكـو ټيكـه ، هغـه دارو چې د چيچـك د مـخ نيوي دپاره د رګونو وهلو دپاره پكارولے شي ـ

**وړ** :-(و + ړ)(صف ، مذ ) ګټونكے ، غالب ، بريالے ، په حقه ـ

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب)(پ تر ،اس ، مذ ) غلبه ، ګټه ، بريالي توب ـ

**ـــ كول** :- وړ ګرځول ، فاتح ګرځول ، غالب كول ،كاميابه ګرځول ـ

**ـــ كېدل** :- غالب كېدل ، بريالے كېدل ، لوبه يا مقابله ګټل ـ

**دافسوس ـــ** :- (د ، ا+ف+ سو + س ـــ ) د افسوس كولـو قابل خبر وغيره ـ افسوسناك ـ

**داعتبار ـــ** :- (د ، اې + ع + ت + با + ر ـــ ) هغه چې د اعتبـار قابـل وي ـ قابـل د

اعتبار، اعتباري.

**وړ** :- (و + ړ) (اس، مذ) رنګ، طرز، انداز، لکه: بل وړ (بل رنګه).

**وړ** :- (وُ + ړ) (اس، مذ) نفع، فائده، منفعت.

**ـــ اخيستل** :- نفع اخيستل، فائده اخيستل، منفعت موندل.

**ـــ بلل** :- وړ ګرځول، بريالے ګرځول.

**وړ** :- (و + ړ) د ,, ويړ ،، لنډيز شکل دے.

**وړ** :- (و + ړ) (اس، مذ) په دوکان کښې د خرڅ مختلف قسمه څيزونه.

**ـــ برابرول** :- په دکان کښې هغه څيزونه ورزياتول کوم چې موجود نۀ وي.

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے) (پ تر، اس، مذ) لياقت، اهليت، سزا واري، قابليت.

**ـــ کېدنه** :- (ـــ کې + د + نَ) (حمص) لايق کېدنه، سزاواري وجوب، لازم کېدنه.

**وړا** :- (و + ړا) (اس، مع) د مامندو څانګه ده. ترکاڼي دي. (,, وړ ،، هم ورته وائي).

**وړاندون** :- (و + ړا + دو + ن) (پ تر، اس، ظر) وړاندې کېدنه، وړاندې والے، سبقت.

**وړاندې** :- (و + ړا + ن + دې) (اس، ظر) مخکښې، پيش، اول، اګاهو، سابق. لکه: لکه چې ما وړاندې ووئيل. (دا لفظ متضاد معنې لري).

**مخ په ـــ** :- (م + خ + پ ـــ) په مخکښې، رو به پيش، مخکښې طرف ته، مخامخ لوري ته.

**ـــ کول** :- پيش کول، په مخکښې کښېښودل. لکه: استعفا وړاندې کول. د مخکښې تلونکي (اس، موټر وغېره) څخه (اس يا موټر وغېره) د وروستو نه مخکښې کول. ور دوځارول، ورپېښول. لکه: مشکلات وړاندې کول.

**ـــ کېدل** :- مخکښې کېدل، پيش کېدل. د بل نه په مقام يا وخت کښې اول يا اګاهو کېدل. لکه: ګړۍ مې شل منټه وړاندې شوې ده. د خپل ځاے څخه لږ يا ډېر مخکښې کېدل. امامتۍ دپاره د صف نه مخکښې کېدل. د لاړ ښودنې دپاره د ملګرو نه مخکښې کېدل. ترقي کول، په مخکښې تګ کول.

**ـــ کېدنه** :- مخکښې کېدنه، د خپل ځاے څخه مخکښې کېدنه. ترقي کونه، په مخکښې تلنه، رهنمائي کونه، امامت کونه.

**ـــ تګ** :- (ـــ ت + ګ) په مخکښې تلنه، د بل په مقابله کښې مخکښې کېدنه.

**ـــ وروستو تلل** :- د خدمتګار يا نوکر د خدمت دپاره د مالک نه وړاندې وروستو کېدل.

**ـــ وروستو** :- (ـــ و + رو + س + تو) مخکښې او شاته، خواؤ شا (وخت) څۀ قدرې اګاهو يا څۀ قدرې وروستو. ماضي او مستقبل. تېر شوے او راتلونکے.

**ـــ تلل** :- په مخکښې تلل، مشري کول، رهنمائي کول. د ګړۍ د ستنو تېز ګرځېدل او مخکښې وخت ښودل.

**ـــ کېدل** :- د مخکيني سرې وغېره نه په تګ کښې مخکښې کېدل.

**سترګو ته ـــ کېدل** :- ياد بدل، په تصور کښې ښکاره کېدل.

**ـــ فکر کول** :- مخکښې لارې ته پام کول، د مستقبل فکر کول. د وخت نه اګاهو فکر کول. لکه: تاله وړاندې فکر کول پکار وو يا ـــ وړاندې دې فکر نۀ کاوۀ.

**تلونے** :- (ـــ ت + لو + نے) (پ تر، اس، فا، ج ـــ نې) وړاندې تلونکے، مخکښې تلونکے، پيش قدمي کوونکے.

**ـــ کول** :- په مخکښې کول، د عزت دپاره د ځان نه مخکښې کول. د نمانځه کښې دامامتۍ دپاره مخکښې کول، پيش کول.

**ـــ وروستو کېدل** :- خواؤ شا کېدل، خدمت کول.

**ـــ وروستو کتل** :- د کار اغاز او د انجام په حقله غور او فکر کول.

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے) (پ، تر، اس، مذ) مخکښې کېدنه، د مخکښې کېدلو حالت، پيشروي.

**وړاندينۍ** :- (و + ړا + ن + دي + ن + ۍ) (ت تر، اس، مو) د ,, وړاندينے ،، تانيث دے.

**وړاندينے** :- (و + ړا + ن + دي + نے) (پ تر، اس، مذ، ج ـــ ني) مخکښينے، هغه چې د نورو نه مخکښې وي. اولنے، سابق، لکه: وړاندينے د وروستي پُل وي.

**وړانګه** :- (و + ړا + ن + ګَ) (اس، مو، ج ـــ ګې) د رڼا څړيکه، پلوشه، شعاع. رڼا، پرتو، د رڼا عکس. سکروټه، سروټکه.

**وړانګې** :- (و + ړا + ن + ګې) د ,, وړانګه ،، جمع ده. د ,, وړانګه ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي. لکه: د نمر / نور وړانګې.

**وړانګين** :- (و + ړا + ن + ګي + ن) (پ تر، صف، مذ، مو ـــ ه) وړانګو واله، پلوشوو واله، وړنګين.

**وړانه** :- (و + ړا + نَ) (پ تر، اس، مو، ج ـــ نې) وړ کېدنه، برے موندنه، بحث يا مقابله وغېره ګټنه.

**ـــ پړانه** :- (ـــ پ + ړا + نَ) (پ تر، اس، مو، ج ـــ نې ـــ نې) ورکېدنه او پړ کېدنه، ګټنه او بېلنه. حق او نا حق، رښتيا او دروغ، ملامته او نا ملامته.

**ـــ پړانه معلومول** :- حق او ناحق معلومول، رښتيا او دروغ معلومول، ملامته او ناملامته معلومول.

**وړجن** :- (و + ړ + ج + ن) (پ تر، صف، مذ، مو ـــ ه) وړ لرونکے، جراثيمو واله، مېکروبي.

**وړغندے** :- (و + ړ + غ + ن + دے) (اس، مذ، ج ـــ دي) د ,, غړوندے ،، مقلوب شکل دے. د مرۍ پړے، په مرۍ کښې د اچولو د پړي حلقه. وندر، حقې واله پړے، څنګے.

**وړغوندے** :- (و + ړ + غو + ن + دے) (و ـــ وړغندے).

**وړک** :- (و + ړ + ک) د ,, وړوک ،، لنډيز شکل دے. د سابقې په طور استعمالېږي.

**ـــ توب** :- (ـ تو + ب) (پ تر، اس، مذ) وړوکوالے، وړوکتوب، کچنيوالے.

**وړکو** :- (و + ړ + کو) (اس، مو) وړه، وړه جينۍ مجازاً: معشوقه، محبوبه.

**وړکوټکے** :- (و+ړ+ کو+ ټ+کے) (پ تر، اس، مذ) د ,, وړکوټے ،، تصغير دے. ډېر وړوکے، ډېر وړکوټے. لکه: وړکوټے حرکت يا هلک.

**وړکوټے** :- (و + ر + کو + ټے) (پ تر، اس، مذ، ج ـ ټي) وړوکے، کچ، ډېر وړوکے، ډېر ووړ.

**وړکي** :- (و + ړ + کي) د ,, وړکے ،، جمع. د ,, وړکے ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**وړکے** :- (و + ړ + کے) (پ تر، صف، اس، ج ـ کي) ډېر وړوکے، وړکوټے. هلک، طفل.

**وړکتون** :- (و + ړ + ک + تو + ن) (پ تر، اس، ظر) د وړو د ساتنې او پام لرنې ځاے

**وړکيتوب** :- (و + ړ + کي + تو + ب) (پ تر، اس، مذ) (و ـــ وړوکوالے).

**وړکينکے** :- (و + ړ + کي + ن + کے) (و ـــ ور کوټے).

**وړکينه** :- (و + ړ + کـي + نَ) (پ تر، اس، مـو) وړوکـوالې، کچنيوالے، خوردسالګي، هلکوانه، ماشوموالے، لکه: په وړکينه وادۀ ول.

**وړګينه** :- (و+ړ + ګي + نَ)(پ تر،صف) د وړې نه جوړ شے، وړين۔

**وروزئ** :-(و + رو + ز + ئ)(اس،مع) ديشي وايو قبيله ده۔سواتي دي۔

**وروعثمان خېل** :- (و + رو + ع + ث+ ما + ن+ خې + ل)(اس،مع)د عثمان خېلو څانګه ده۔(عثمان خېل، بر رانړي زئ، اکوزئ يوسفزي دي۔

**وړل** :-(و + ړ + ل)(مص) زغمل، برداشت کول۔

**مېدان** :- (مې + دا + ن ـــ) مقابله کښې يا په جنګ کښې بريالے کېدل، مېدان ګټل۔

**خبره** ـــ:-(خ + ب + ر ـــ) خبره زغمل، خبره برداشت کول۔

**برے** ـــ:- (ب + رے ـــ) برے موندل، فتح ياب کېدل، بريالے کېدل، مېدان ګټل۔

ـــ**راوړل** :- (ـــ را ، و + ړ + ل)کوم څيز د يو ځاے څخه بل ځاے ته، او له هغه ځايه زور ځاے ته رسول۔(محاورتاً) د يو خبره بل ته او د بل خبره اولني ته رارسول۔چغل خوري کول۔

**نمبر** ـــ:- (ن + م + ب + ر ـــ) بازي وړل ،د بل نه ګټه کول، مقابله ګټل۔

**نوم** ـــ:- (نو + م ـــ) مشهورېدل، شهرت موندل، نوم خورېدل، نوم ګټل۔

**وړم** :- (و + ړ + م)(فعل) د ,,وړل،، مصدر نه د حال (واحد متکلم) فعل۔

**وړم** :- (و + ړ + م)(صف ،مذ ،مو ـــ ه) تېر شوے، تېر، وروستنے، ګذشته (عموماً هغه وخت چې يو کال يا ورځ مياشت وغېره ئې تر مينځه وي)۔

ـــ **کال** :- (ـــ کا + ل)(پ تر،اس،ظر) د تېر شوي کال نه مخکښې تېر شوې کال۔تېر کال نه بل کال، پارسال۔

**لاـــ کال** :- (لاـــ کا + ل)(پ تر،اس،ظر) د اوړم کال نه مخکښينے کال۔

**وړمبے** :- (و + ړ + م + بے)(صف ،مذ ،ج ـــ بي) اولنے، وړاندينے، وړونبے۔

**وړمبۍ** :- (و + ړ + م + ب + ۍ)(اس ، مو) د ,,وړومبے،، تانيث دے۔

**وړمه** :-(و + ړ + م)(صف ،مو،ج ـــ مې) د ,,وړم،، تانيث دے۔

ـــــ**ورځ** :-(ـــ و + ر + (د) ز)(پ تر،اس،ظر) پرون نه ا بله ورځ، د پرون نه مخکښې تېره شوې ورځ۔

ـــــ**ورځنۍ** :- (ـــ و +ر(د) ز + ن + ۍ)(پ تر،صف) هغه کار يا څيز چې اوړمې ورځې سره تعلق لري۔ لکه : وړومه ورځنۍ غونډه۔

ـــــ **مياشت** :- (ـــ م + يا + ش + ت)(پ تر،اس،مو) د تېرې مياشتې نه مخکښينۍ مياشت، هغه مياشت چې يوه مياشت ئې تر مينځه ده۔

**لاـــ ورځ** :- (لاـــ و +ر + (د) ز)(پ تر،اس،ظر) د وړومې ورځې نه مخکينۍ ورځ

**وړنګن** :- (و + ړ + ن + ګ + ن)(پ تر،صف،مذ،مو ـ ه) وړانګـو والـه، پلوشو واله، زلقېدونکې، ځلېدونکې۔

**وړنګه** :- (و + ړ + ن +ګَ)(اس،مو،ج ـــ ګې) وړانګه، پلوشه، سکروټه، سروټکه، د اور بڅرے دُره۔

**وړنګے** :- (و + ړ + ن + ګے)(صف،اس،مذ،ج ـــ ګي) رنګے، چې ګور يا ګڼ نۀ وي۔يو يو ،ځان ځان له (بوټے وغېره)۔

**وړنګے** :- (و + ړ + ن + ګے)(اس،مذ،ج ـــ ګي) خوردبين، ميکروسکوپ ، ذره بين

**وړو** :- (و + ړو) د ,,واړۀ،، بدل شکل دے۔چې د متغيره ؤ تورو سره راځي۔ لکه : د وړو مور۔

**وړو** :- (و+ړو) د ,,واړه،، (ټول) بدل شکل چې ځينو مغيره ؤ تورو سره راځي ۔ لکه : د وړو(خلقو) دا خيال دے چې---

**وړوالے** :- (و + ړ + وا + لے)(پ تر،اس،مذ) وړکېدنه، وړانه ۔

**وړوبے** :- (و + ړو + بے)(پ تر،اس،مذ،ج ـــ بي) د اوړو او د اوبو ګډون ،ار دابه۔

**وړوکتوب** :- (و + ړو+ک + تو + ب)(پ تر،اس،مذ) وړوکوالے، وړوالے۔

**وړوکي** :- (و + ړو + کي)(پ تر،اس،ج) واړۀ واړۀ هډوکي، دپښې د شا واړۀ هډوکي۔د پښې د شا پلي / اعصاب۔

**وړول** :- (و + ړ + ؤ + ل)(مص) وړ کول، بريالے کول۔

**وړول** :- (و + ړ + و + ل)(مص) روړول، اوړۀ کول، مېده کول۔

**وړول** :- (وو + ړ + ؤ + ل)(مص) وړوکے کول، ووړ کول۔

**وړوميلے** :- (و+ ړو +م + ب + لے)(پ تر،اس،ظر،ج ـــ لي) وړومبے، وړومبنے۔

**وړومبي** :- (و + ړو + م + بي) د ,,وړومبے،، بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**په ـــ سر کښې** :-په اول سر کښې، په شروع کښې، په شورو کښې، په اغاز کښې۔

**وړوند** :-(و + ړو + ن + د)(و ـــ ړوند)۔

**وړونکے** :- (و + ړو+ ن + کے)(پ تر،اس،فا،ج ـــ کي) وړلو واله، د يو ځاے نه بل ځاے ته رسوونکے۔زغمونکے، برداشت کوونکے۔

**وړونه** :-(و + ړ + و + نَ)(حمص) وړکونه، بريالے ګرځونه۔

**وړونه** :- (و + ړ + ؤ + نَ)(حمص) اوړۀ کونه، مېده کونه۔

**وړونه** :- (و + ړ + و + نَ)(حمص) وړوکے کونه، ووړ کونه۔

**وړه** :- (و + ړ)(اس،مو،ج ـــ ړې) د ,,ووؤ،، تانيث دے۔وړوکې جينۍ يا مؤنث څيز۔

**وړه** :- (و + ړ)(اس جم) مناسب، شائستګي، مناسب۔

**وړه** :- (و + ړَ) د ,,واړه،، لنډيز شکل دے۔ټول، همه۔

**وړه** :- (و + ړَ)(صف ،مو،ج ـــ ړې)د ,,وړ،، تانيث دے۔

**وړه** :- (وَ + ړَ)(اس،مو) هغه مزے کوم چې د تنستې په تارونو کښې وروا چولے شي او بيا د اُودلو کار درست کړے شي۔

**وړه** :- (و + ړَ)(فعل) د ,,وړل،، مصدر نه د استمراري امر (واحد) فعل۔

**وړۀ** :- (و + ړ)(اس،جم) اوړۀ، ارد۔

**وړۀ** :- (و + ړ)(حمص) وړنه، د يو ځاے څخه بل ځاے ته رسونه۔زغمنه، برداشت کونه۔

**وړي** :- (و + ړي)(اس،جم) هغه تارونه کوم چې د تنستې د تارونو ښکته پورته کولو دپاره لګولے شي۔ د کد (ګليم) زياتي حاشيه۔

**وړي** :- (و + ړي)(فعل) د ,,وړل،، مصدر څخه د حال (غايب) فعل۔

**وړئ** :- (و+ړ +ئ)(فعل)د ,,وړل،، مصدر څخه د جمع امر فعل۔د ,,وړل،، مصدر څخه د حال (جمع مخاطب) فعل۔

**وړئ** :- (و + ړ + ئ)(اس،مو) بړې،د مختلفو دالونو څخه جوړ شوي غونداړي چې پخولے شي۔

**وړۍ** :- (د + ړ + ۍ)(اس،مو) د ګډې، اوښ وغېره د بدن پشم۔

**وړے** :- (و + ړے)(اس،مذ،ج ـــ ړي) شاهي فرمان، پرمان۔

**وړے** :- (و + ړے)(اس ، مذ) د وريجو وغېره دل يا ټوټې ماتې شوې وريجې۔

**وړے** :- (وُ + ړے)(اس،ظر،مذ،ج ـــ ړي) روړے، د ګرمۍ موسم۔

**وړے** :- (و + ړے)(فعل) د ,,وړل،، مصدر څخه د حال ۔(واحد حاضر) فعل۔

**وړے** :- (و + ړے)(اس،مذ) هغه شنه ماده کوه چې د مېوو يا د غوښې دپاره راپيدا شي۔چناسه، شنخا ۔

**وړے** :- (و + ړے)(فعل)د ,,وړيے،، لنډيز شکل، ته وړيے۔

**وړے** :- (و + ړے) د ,,وړه،، جمع ده ۔د ,,وړه،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔

**وړے** :- (و + ړے)(ﻫ ، اس ،جم) د ,,وړه ،، جمع ده .د مختلف قسم دالونو د دلو څخه جوړې کړې پکوړې ، بړے.

**وړیا** :-(و + ړ + یا )(اس،مذ) مفت ، په کمه بیعه ، ارزان.

**ـــ اخیستل** :- وړیا اخیستل ، مفت اخیستل ، مجازاً: ارزان اخیستل ، په کمه بیعه اخیستل.

**ـــ ورکول** :- وړیا ورکول ، مفت ورکول ، مجازاً ارزان ورکول ، په کمه بیعه خرڅول.

**ـــ تلل** :- وړیا تلل.مفت تلل ، مفت خرڅېدل.په کمه بیعه خرڅېدل ، ارزان خرڅېدل.

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے)(پ تر،اس ، مذ ) مفت والے ، بې قیمته یا ارزانه بیعه.

**وړیان** :- (و+ړ + یا + ن)(ا س،ج ) د دال لـه قسمونو څخه یو قسم .(و ـــ وړے / بړے ).

**وړېدل** :- (و + ړې + د + ل)(مص) ووړ کېدل ، وړوکے کېدل.

**وړېدنه** :- (و + ړې + د +نَ)(حمص) وړوکے کېدنه ، ووړ کېدنه.

**وړېدونے** :- (و + ړې + دو + نے)(پ تر،اس،فا ،ج ـــ نې) وړوکے کېدونکے ، ووړ کېدونکے.

**وړیکواړے** :- (و + ړې + ک + وا + ړے)(اس ،مذ) د هلکا نو د یوې لوبې نوم دے.چې په کښې په یو بل سورلي کوي.

**وړین** :- (و + ړ ي+ ن)(پ تر،صف ،مذ ،مو ـــ ه) د وړۍ څخه جوړ شوې .(اُ ـــ اونی ).

**ـــ حیوانات** :- (ـــ حې + وا+ نا + ت ).

**ـــ ځناور** :- (ـــ (د) ز +ـ نا + ور )(پ تر،اس ،ج ) هغه ځناور یا حیوانات کوم چې په بدن باندې پشم (وړۍ) لري.

**ـــ توکر** :-(ـــ تو + ک + ر ).

**ـــ توکے** :-(ـــ تو + کے )(پ تر،اس،مذ ) د وړۍ (د ځناورو د پشم (څخه جوړه شوې کپړه).

**وړینه** :- (و + ړي + نَ)(پ تر،صف) مناسبت ، لیاقت ، موزونیت.

**وړینه** :- (و + ړي+نَ) (پ تر،اس،مو،ج ـــ نې) د ,,وړین ،، تانیث .د وړۍ څخه جوړه شوې (کپړه وغېره).

**وړیو** :- (و + ړي + یو ) د ,,وړۍ ،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي. لکه : د وړیو د اودلو کارخانه.

**وز** :- (وُ + ز )(اس ،مذ ،ج ـ ان / ونه ) چېلے ، بیز ، سیرۍ.

**وزارت** :- (و + زا + ر + ت )(ع،تر،اس،مذ ،ج ـــ ونه) د وزیر عهده ، د وزیر ذمه داري یا کار.

**ـــ داخله** :- (ـــ (ت) دا + خ + لَ).

**داخله ـــ** :- (دا + خ + لَ ـــ)(عف تر ،اس ،مذ ) هغه وزارت چې د ملک دننه معاملات سرته رسوي.

**ـــ خارجه** :- (ـــ (ت) خا+ ر + جَ).

**خارجه ـــ** :-(خا+ر+جَ ـــ)(عف،تر،اس، مذ ) د باهرني ملکونو سره تعلقات او معاملات سرته رسونکے وزارت.

**ـــ صحیه** :-(ـــ (ت) ص + حي + ئ)(عف ،تر،اس،مذ ) د اولس د صحت خیال ساتونکے ، وزارت.

**ـــ خانه** :- (ـــ خا + نَ)(عف،تر،اس،مو،ج ـــ نې) هغه عمارت یا عمارتونه چې په کښې د کوم وزارت دفترونه وي.

**هوائي ـــ** :- ( ﻫ + وا + ئي ـــ)(عف،تر،اس،مذ ) هغه وزارت چې د هوائي سفرونو وغېره سره متعلق ذمه داری لري.

**ـــ مالیه** :- (ـــ (ت) ما + ل/لي + يَ).

**د مالیه ـــ** :- (د ، ما + لي/ل + ي ـــ)(عپ تر،اس،مذ ) هغه وزارت کوم چې د مال سره تعلق لري.د مال وزارت. د فینانس وزارت.

**د معـدنو او صـنایعو ـــ** :- (د ،م+ع+د+نـو ،او، د ،ص، نـا +یـې+ عـو )(عـپ ،تر،اس،مـذ ) هغـه وزارت کـوم چـې د غرونـو وغېـره د معـدنیاتو د صنعتونو سره تعلق لري.

**ـــ مختاري** :- (ـــ (ت ) م+خ + تا + ري )(عف ،تر،اس،مذ ) هغه وزارت کوم چې هر قسم اختیارات لري.

**وزبک** :- وُ + ز + ب+ک )(اس،مع ) اوزبک .د یو مشهور قوم نوم.

**وزر** :- (و + ز + ر )(اس ، مذ ، ج ـــ ونه / رې) د مرغۍ مارغانو د بڼو څخه ډک لاس یا مټ ، چې هغه پرې الوزي. د مچ مچانو وغېره چینجو د بدن هغه برخه چې هغه پرې الوزي. د مرغۍ مارغانو یوه بڼه ، پر.دکتاب قایه ، کاتیی ، مټ ، متې ، طاقت ، زور ، پشتیوان.

**د مچ ـــ** :- (د ، م + چ ـــ)(پ تر،اس،مذ ) د مچ هغه بازو چې هغه پرې الوزي.(مجازاً ډېر زیات سپک څیز.

**وزر ـــ** :- وزر پیدا کېدل. زور قوت پیدا کېدل.طاقت حاصلول.شته من کېدل. (د مېږي چې ورکاوے راشي نو وزر وکړي ). (متل )

**ـــ اخیستل** :- (و ـــ وزر پرېکول ).

**ـــ پرېکول** :- د مرغۍ څخه وزر قینچي کول ،د الوتو نۀ پاتې کول.

**ـــ کېدل** :- طاقت پیدا کېدل ، زور پیدا کېدل ، مجازاً: بدې ورځې راتلل ، شامت راتلل.(د مېږو چې وزر وشي نو لږ وخت والوزي بیا مرۀ شي ).

**ـــ ماتول** :- لاس ماتول ، مټ ماتول ، مجازاً: چاله ملګرے یا معاون وژل ، د چا زور کمول یا ختمول.

**تر ـــ لاندې** :- مجازاً: په سرپرستۍ کښې.په معاونت کښې. لکه : د وزر تر لاندې نیول.

**ـــ پرې کول** :- (و ـــ وزر ماتول ).

**وزر** :- (وُ + ز +ر ) د ,,عذر ،، بدل شکل دے.

**ـــ کول** :- عذر کول ،معذرت کول ،فاتحه کول ،د مېلمه خاطر تواضع کول.

**ـــ وال** :- (ـــ وا + ل)(پ تر،اس،مذ ) عذر کوونکے ، فاتحه کوونکے .

**وزراء** :- (و + ز + را )(ع،اس ،ج ) د ,,وزیر ،، جمع ده.وزیران.

**وزرو** :- (و + ز + رو )د وزرونو بدل شکل.

**د بل په ـــ الوتل** :- د بل زور قوت یعني مرسته او امداد کوم کار کول.

**وزرونه** :- (و+ز+رو+ نَ)(اس،مذ،ج ) د ,,وزر ،، جمع ده.

**ـــ کول** :- (و ـــ وزر کول ).

**ـــ خپرول** :- د مرغۍ مارغانو ، خپل وزرونه پرانستل.مجازاً: الوتلو ته تیارېدل.

**دواړه ـــ** :- (د + وا + ړ ـــ)(پ تر،اس، ج) دواړه وزرې ، دواړه پر ، مجازاً : ټول طاقت ، ټول وزر.لکه : دواړه وزرونه ئې مات شول.

**وزرې** :- (و + ز + رې )(اس،مو،ج ) د ,,وزر ،، تانیثي جع ده.

**ـــ نغښتل** :-

**ـــ نغاړل** :- وزر راغونډول.مجازاً: الوتلو ته تیارے کول.

**ـــ کول** :- (و ـــ وزر کول ).

**وزغان** :- (و + ز + غا+ ن )(اس،ج ) چارمغز.

**وزغـنجن** :- (و + ز + غ + ن + ج + ن )(پ تر،صـف،مذ ،مو ) هغـه څیـز چـې د وزغوني نه جوړ شوے وي.د چېلو بزو د وړۍ څخه جوړ شوے.

**وزغۍ** :- (و + ز + غ + ئ )(اس،مو ) وړه نوجنه دانه ، بزغۍ.

**وزګار** :- (و + ز + ګا + ر )(صف ،مذ ،مو ـــ ه ) اوزګار ، هغه چې څۀ کار ئې نۀ

وي ، بې کاره ، فارغه۔

رحمان هسې وزګار چېرې دے یارانو
چې غوږ ونیسي ناصح غوندې وزګار ته (رحمان بابا)

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب) (پ تر،اس،مذ) وزګار والے ، بې کاري ، د کار نیشتیا،فراغت ، فرصت۔

**ـــ والے** :- (ـــ وا + لے) (پ تر،اس،مذ) (و ـــ وزګار توب)۔

**ـــ تیا** :- (ـــ ت + یا) (پ تر،اس،مو) (و ـــ وزګارتوب)۔

**ـــ خېل** :-(ـــ خې + ل) (پ تر،اس،مذ،ج ـــ ه) هغه سړے چې وزګار قبیلې سره تعلق لري۔ مجازاً: بېخي وزګار ، هغه چې هېڅ کار نۀ لري۔بې کاره۔

**ـــ خېله** :-(ـــ خې + لَ) (پ تر، صف ،اس،مو،ج ـــ لې) د ,,وزګار خېل ،، تانیث دے۔

**ـــ وخت** :- (ـــ و + خ + ت) (پ تر،اس،مذ،ج ـــ ونه) بې کاره وخت ، هغه وخت چې په کښې د کولو هېڅ کار نۀ وي۔فارغ وخت ،د فرصت وخت۔

**کلي ـــ توب** :- (کُ +ل + لي ـــ) (عف،تر،صف،مذ ، مو ـــ ه) بالکل وزګارتیا ، بالکل فراغت۔

**جزوي ـــ توب** :- (پ تر،اس،مذ) د لږ وخت دپاره وزګارتیا ، د لږ وخت فراغت۔

**وزګارول** :-(و + ز + ګا + ر + ؤ + ل) (مص) کار له چا څخه اخیستل ، بې کاره کول۔فارغ کول۔(لوبې وغېره) تشول ، خالي کول۔

**ځان ـــ** :- ((د) زا + ن ـــ) د کار نه خپل ځان فارغ کول ، کار ختمول چې فارغ شي

**وزګاري** :- (و + ز + ګا + ري) (پ تر،اس،مو) وزګارتیا ۔

**وزګارېدل** :- (و + ز + ګا + رې + د + ل) (مص) فارغ کېدل ، کار نۀ پاتې کېدل ۔ خالي کېدل ، تشېدل۔

**وزګارېدنه** :- (و + ز + ګا + رې + د + نَ) (حمص) کار نۀ پاتې کېدنه ، فارغ کېدنه ، خالي کېدنه ، تشېدنه۔

**وزګارېدۀ** :- (و + ز + ګا + رې + د) (و ـــ وزګارېدنه)۔

**وزرګي** :- (و + ز + ر + ګي) (و ـــ بزرګي) لوئي ، مشري۔

**وزګړے** :- (و + ز + ګ + ړے) (اس،مذ،ج ـــ ړي) پیسـۀ ،نر چېلے ،بیز،غرئیز وز۔

**وزګوړے** :- (و + ز + ګو + ړے) (و ـــ وزګړے)۔

**وزل** :- (و + ز + ل) (مص) وژل ، وجل ، مړ کول ، قتلول۔

**وزله** :- (و + ز + لَ) (اس،مع) وسیله ، چار ، ذریعه۔

**بې ـــ** :- (بې ـــ) (پ تر،اس،صف،ج ـــ لان) بې وسیلې ، بې چاره ، بې ذریعې ، عاجز ، کمزورے۔

**بې ـــ نۀ لرل** :- بله چاره نۀ لرل۔بل صورت نۀ لرل۔بله ذریعه نۀ لرل ۔

**ـــ کېدل** :- اسره ورکړے کېدل ، سبب جوړېدل۔

**وزله** :- (و + ز + لَ) (اس،مو،ج ـــ لې) (عموماً د نفي په شکل کښې ,,بې،، سره یو ځاے راځي)۔

**وزلي** :-(و + ز + لي) (پ تر،اس ،مو) چارګي ، وسیله ، (عموماً ,, بې ،، سابقې سره استعمالېږي)۔

**بې ـــ** :- (بې ـــ) بې چارګي ، بې وسیله توب ، لاچاري ،مجبوري۔

**وزم** :- (و + ز + م) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) اهنګ ، وزن (د شعر سندرې) څهره ، رنګ۔

**په ـــ کښې وئیل** :- په وزن یا سُر سره وئیل۔

**وزم** :- (و / وو + ز + م) (فعل) د ,,وتل ،، مصدر نه څخه د حال (واحد متکلم) فعل۔

**وزمي** :- (و + ز + مي) (پ تر ، صف) وزم واله ، اهنګ واله ،وزن سُر لرونکے۔

**وزن** :- (و + ز + ن) (ع،اس،مذ،ج ـــ ونه / اوزان) تول ، درون والے ، پیمانه ، مقدار ،جاج ، اندازه۔ قدر و قیمت (عروض) د شعر تول ، بحر۔

**ـــ کښ** :- (ـــ ک + خ / ش) (ف پ تر،اس،مذ،ج ـــ ان) وزن معلومونکے ، تولي۔

**ـــ کول** :- تلل ، تول کول ،درون والے معلومول ،د شعر د وزن / تول د صحیح او غلط اندازه لګول۔

**د ـــ پهلوان** :- (د ـــ پ + هـ + ل + وا +ن) (فپ،تر،اس،مذ ،ج ـــ ان) هغه قوتناک سړے چې دروند نه دروند تول واله څیز پورته کوي ۔ کرین ، هغه اله چې درانۀ څیزونه پورته کوي۔

**ـــ کېدل** :- تللے کېدل ، دروند والے معلومېدل۔

**ـــ برداري** :- (ـــ ب + ر + دا + ري) (ف تر ، اس ، مو) وزن پورته کونه ، د مقابلې دپاره د وزن خاص څیز پورته کونه۔

**وزنه** :- (و + ز + نَ) (اس ، مو ، ج ـــ نې) د کانې ، شیشې وغېره هغه څیز چې د کاغذونو دپاسه کښېښودے شي۔پیپر وېټ۔

**وزني** :- (و + ز + ني) (صف) وزن واله ، دروند ، وزن دار وقعت واله ، د قبلولو وړ ، حقیقت لرونکے ، لکه : وزني دلیل۔

**وزنے** :- (و + ز +نے) (صف،مذ) چالاک ،مکار ، دوکه باز۔

**وزو** :- (و + زو) د ,,وزے ،،بدل شکل چې دمغیره ؤ تورو سره راځي۔ لکه : د وزو مالک ۔

**وزو** :- (و /وو + زو) (فعل) (و ـــ ووځو) د ,,وتل ،، مصدر څخه شرطیه فعل ۔

**وزو** :- (و /وو+ زو) (فعل) د ,,وتل ،، مصدر څخه د حال فعل (جمع متکلم) (و ـــ ووځو)۔

**وزونه** :- (و + زو + نَ) (اس،مذ،ج) د ,,وز،، جمع ده۔وزان۔

**وزه** :- (وَ + زَ) (اس،مو،ج ـــ زې) وازه ، لېچ ، قلاچ د دواړو پرانستې لاړونو د یو سر نه تر بل سره پورې اوږدوالے۔

**وزه** :- (و + ز) (اس،مو) د سپېنتې د اړولې پرېوتلو حالت۔

**وزه** :- (و /ووُ + زَ) (فعل) د ,,وتل ،، مصدر څخه د امر فعل ووځه۔

**وزه** :- (و + ز) (و ـــ وضع)۔

**وزه** :- (و + زَ) (اس ،مو،ج ـــ زې) بیزه ، چېلۍ ، بزه۔

**وزے** :- (و/وو+زے) (فعل) د ,,وتل ،، مصدرڅخه د حال (واحد غایب) فعل ۔تۀ ووځې۔(خج په ,,زے ،، باندې دے۔

**وزے** :- (و / وو + زے) (فعل) د ,,وتل ،، مصدر څخه شرطیه فعل ته ووځې۔ (خج په ,,و / ووُ،، باندې دے)۔

**وزے ګېره** :- (و + زې + ګې + رَ) (اس ، مو) یو قسم ګیا ده۔چې په اوبو کښې پیدا کېږي۔د بلولو او د اور د بلولو دپاره پکار ولے شي۔

**وزېدل** :- (و + زې + د + ل) (مص) د باد چلېدل۔ (ف : وزیدن)۔

**ـــ کېدل** :- وزېدل ، د باد چلېدل۔

**وزیپه** :- (و + زي + پَ) (و ـــ وظیفه)۔

**وزیپه** :- یو قسم ګیاه ده۔

**وزیر** :- (و + زي + ر) (اس ، مع) د پښتنو یوه لویه او زوره وره قبیله ده ۔ په کرلاڼیو کښې حسابېږي ۔د دوي د غور نیکۀ وزیر درې زامن وو محمود ، موسیٰ او موسیٰ درویش۔د محمود او لاد محسود دي۔ (و ـــ محسود) او د مبارک ګریز چې په افغانستان کښې اباد دي او د موسیٰ درویش اولاد درویش خېل نومېږي او د وزیرو نه دا د

همدا درویش خېل دي۔ د وزیر لوے ټاټوبے پیرمل (افغانستان) ګڼلے شي چې څوارلسمه پیړۍ (عیسوي) کښې لـه دغه ځایه را وخوزېدل او ختېکان ئې له شاول او کوهاټ څخه بې دخله کړل او دلته اباد شول ۔وزیر او محسود لکه چې بره ذکر وشۀ د یو نیکۀ اولاد دے ۔خو وروستو ځان لـه دوه جدا قامونه وګرځېدل ۔چې اکثره ئې په خپله کښې جنګ جګړې پاتې شوې دي ۔ د درویش خېلو لوئې لوئې قبیلې دا دي :- اتمان زئ او احمد زئ۔

**وزیر** :- (و + زي + ر) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــــ ان) د بادشاه د لاندې لویـه عهده۔دیوان چې د حکومت ټول کارونه سرته رسوي او بادشاه لـه مشورې ورکوي۔ د صدر د لاندې د حکومت د ټولو کارونو ذمه وار چې د خلقو د ووټونو په زور راغلے وي ۔ د شطرنج د لوبے یوه مهره چې د شطرنج په کور کښې هر طرف ته تلے شي۔ د پښتنو یوه لویه قبیله۔د پښتنو په نومونو کښې استعمالېږي۔

**وزیرو** :- (و + زي + رو) د ,,وزیر ،، (جمع) بدل شکل چې د مغیرهٔ توروسره راځي۔

**د ـــ ګډا** :- (د ـــ ګ + ډا) (پ تر ،اس ، مو) هغه خاص قسم ګډا ، چې وزیر زلمي ئې د خوشحالۍ په وخت کوي۔

**د ـــ چاړهٔ** :-(د ـــ چا + ړ) (پ تر ،اس،مو ،ج ـــ چړې) یو خاص قسم چاړهٔ چې څوکه ئې نیغه وتې وي او د تبرهٔ مخ شانه بل مخ ئې پلن وي۔

**وزیمه** :- (و + زي + م) (پ صف،مو،ج ـــ مې) چېلۍ یابزه چې د نر طلب ئې پیدا شوے وي۔ګرمه شوې چېلۍ،بزه۔

**وزیره** :- (و + زي + رَ) (اس،مو،ج ـــ رې / انې) د ,,وزیر ،، تانیث دے۔

**وزیري** :- (و + زي + ري) (فپ،تر،اس ،مو) د ,,وزیر ،، ذمه دارۍ ، وزارت د وزیر په ملک کښې جوړ شوے ۔ ,,وزیر،، قوم سره تعلق لرونکے ۔ وزیرو ته منسوب۔

**وزین** :- (ع ، صف) درونډ۔

**وزیـن** :-(و + زي + ن) (صف ، مذ ، مـو ـــ ه) هغه څیز چې ,,وز،، غرئیز ګډ سره تعلق لري۔

**وزیـرئ** :- (و + زي + ر + ئ) (پ تر ،مو، صف) ,,وزیر،، قوم یا ملک سره تعلق لرونکے (مونث څیز) لکه وزیرۍ چاړهٔ۔

**وزیرستان** :-(و + زي + ر + س + تا + ن) (اس،مذ) د وزیر او د محسودو د ملک نوم۔

**وزیي** :- (و + ز + يي) (پ تر ، اس ، صف) وز یا وزې سره تعلق لرونکے ، وز یا وزئې ته منسوب ، لکه : وزیې یو ټکے۔

**وزیئ** :- (و+ز + ي + ئ) د ,,وزیي ،، تانیث دے لکه : وزیئ غوښه۔

**وژبه** :- (و + ژ + بَ) (اس ، مو ، جي ـــ بې) خارونۍ ، مشهوره مرغۍ۔

**وژغني** :- (و + ژ + غ + ني) (و ـــ وژغوني)۔

**وژغونه** :- (و + ژ + غو + ن) (اس ،مو،ج ـ نې) د چېلو بزو وړۍ۔

**وژغونے** :-(و + ژ + غو + نے) (و ـــ وژغونه)۔

**وژغونیز** :-(و + ژ + غو + ني +ز) (پ تر،صف،مذ ،مو ـــ ه) د وژغونې نه جوړ شوے څیز۔

**وژل** :- (و + ژ + ل) (مص) وجل ، وزل ، مر کول ، قتلول ختمول ، نیش کول ، محو کول لکه : احساسات وژل۔

**وژلو** :- (و + ژ + لو) د ,,وژل ،، بدل شکل چې د مغیرهٔ توروسره راځي۔لکه : د وژلونه۔

**وژلل** :- (و + ژ + ل + ل) (مص) (و ـــ وژل)۔

**وژلون** :- (و+ژ+لو+ ن) (پ تر،اس،مذ) وژنه ، قتلونه ، مر کونه۔

**وژلم** :- (و + ژ + ل + م) (فعل) د ,,وژل ،، مصدر څخه د ماضي فعل (واحد متکلم)۔

**وژلے** :- (و + ژ + لے) (فعل) د ,,وژل ،، مصدر څخه د ماضي (واحد غایب فعل)۔

**وژلئ** :- (و + ژ + ل + ئ) (فعل) د ,, وژل ،، مصدر څخه د ماضي (جمع مخاطب ) فعل۔

**وژنم** :- (و + ژ + ن + م) (فعل) د ,, وژل ،، مصدر څخه د حاصل (واحد متکلم) فعل۔

**وژنو** :- (و + ژ + نو) (فعل) د ,,وژل ،، مصدر څخه د حال (جمع متکلم) فعل۔

**وژنے** :-(و + ژ + نے) (فعل) د ,,وژل ،، مصدر څخه د حال (واحد حاضر ) فعل۔

**وژنئ** :-(و + ژ + ن + ئ) (فعل) د ,,وژل ،، مصدر څخه د حال (جمع حاضر ) فعل

**وژونکے** :- (و + ژو + ن + کے) (پ تر ،اس،فا ،مذ ،ج ـــ کي) وژلو والـه ، قاتل ، مر کوونکے۔

**ـــــ اله** :- (ـــــ ا + لَ) (پ تر ،اس،مو ،ج ـــ لې) هغه اله چې بني ادم پرې وژلے کېدے شي۔

**وژنه** :- (و + ژ + نَ) (فعل) د ,,وژل ،، مصدر څخه د امر فعل۔

**وژنئ** :-( و + ژ + ن + ئ) (فعل) د ,,وژل ،، مصدر څخه د جمع امر فعل۔

**وژونے** :-(و + ژو + نے) (و ـــ وژونکے) مر کوونکے اله۔

**وژوه** :-(و + ژ + وَ) (اس،مو ،ج ـــ وې) د غابښونو په مینځ کښې وت۔

**وژه** :- (و + ژ) (اس ، مو ،ج ـــ ژې) د مرۍ شاته په ښټ کښې قطه ۔د مرۍ پلې او اعصاب۔ د زنګون پلې او اعصاب۔

**وژے** :- (و + ژے) (اس،مذ ،ج ـــ وژي) رګ ، پله ، عصب۔

**وږے** :- (وُ + ږے) (و ـــ وږے) اوږے ، اوګے ، ګرسنه۔

**ـــــ تږے** :- (ـــ ت + ږے) (پ تر ، صف) وږے تږے ۔هغه سړے چې هم اوږے (ګرسنه) وي او هم تږے (تشنه) ناهر نهور۔

**وژلون** :- (و + ژ + لو + ن) (اس،مذ) وژنه ،وجنه ،ډېر حلال ،ډېر ذبح کول۔

**وږ** :- (و+ګ /ژ) (سابقه) د پښتنوسابقه ده عموماً ,,سترګي،، سره لګي ۔او د وږي ، ګرسنه معنې شیندي۔

**ـــــ سترګي** :- (ـــ س +ت + ر + ګي) (پ تر،صف ،ج ـــ ګي) هغه چې سترګې ئې وږې وي ۔ حرصي ، حرصناک۔

**ـــــ سترګي** :- (ـــ س + ت + ر + ګي) (پ تر،اس،مو) وږ سترګوالے،حرص ، حرصناکي۔

**ـــــ سترګ توب** :- (ـــ س + ت + ر +ګ +تو+ب) (پ تر ،اس) وږ سترګي کول ، حرص ښکاره کول ،نادیده توب څرګندول۔

**وږکے** :- (و + ګ /ژ + کے) (اس،مذ ،ج ـــ کي) اغزکے ، سپل ، خنجک ، خارخسک ، یو قسم دارو دي۔

**وږم** :- (و + ګ /ژ + م) (اس،مذ ،ج ـــ ونه) بوئي ، د کوم څیز نه وتونکے خاص قسم بوئي۔

**ـــ کول** :- خاص قسم بوئي (د کوم څیز نه) پیدا کول ، بوئي کول۔

**ـــــ لول** :- (و ـــ وږم کول)۔

**وږمه** :-(و + ګ /ژ + مَ) د ,,وږم،، بدل شکل چې ځینو مغیرهٔ توروسره راځي۔ لکه : بې وږمه۔

**وږمه** :- (و + ګ /ژ + م) (اس،مو ،ج ـ مې) چپه ،د هوا لهر۔سپک غړ۔

**بې ـــ** :- (بې ـــ) بغېر د څهٔ قسم بوئي نه۔بې بویه۔

**وږبې** :- (و + ژ + ب + ئ) (اس ، مو) د یوې مرغۍ نوم دے۔ کشکره ، کبړکه۔

**وږد** :- (و+ګ /ژ + د) (صف ،مذ ،مو ـــ هٔ) اوږد ، طویل۔

**وږدول** :- (و + ګ /ژ + د + و + ل) (مص) اوږدول ، درازل کول ، طول ورکول.

**وږدېدل** :- (و + ګ /ژ + دې + د + ل) (مص) اوږدېدل ، (اوګدېدل ـ اوژدېدل) دراز کېدل ، طول موندل ، طویل کېدل.

**وږمکی** :- (و + ګ /ژ + م + ک + ی) (اس، مو) د سپوږمۍ رڼا.

**وږمول** :- (و + ګ /ژ + م + و + ل) (مص) په وږم کول ، بوئي (ترې) پېدا کول د باسې کولو په وجه بوئي ترې پېدا کول.

**وږمه** :- (و + ګ /ژ + م) (اس، مو، ج ـ مې) د هوا چپه ، هوا ، سپکه چپه ، سپکه هوا ، باد نسیم.

**وږمئ** :- (و + ګ /ژ + م + ئ) (اس ، مو) وږمکی ، د سپوږمۍ رڼا ـ د بویولو قوت ، قوت شامه.

**وږمېدل** :- (و + ګ /ژ + مې + د + ل) (مص) بوئي پرېښودل ، بوئي کول ، بوئي اخیستل ، بویول.

**وږه** :- (و + ګ /ژَ) (اس، مو، ج ـ ږې) اوږه ، هوږه ، لهسن.

**وږي** :- (و + کي / ژي) د ،، وژے ،، ، جمع ده ـ د ،، وږے ،، ، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي. د وږي نظر په دسترخوان وي. (متل).

**ـــ ټولول** :- د جوارو د بوټو نه د جوارو خوشے شوکول.

**وږئ** :- (و / وو + ګ /ژ + ئ) (اس ، مو) د زنانه ؤ یو کالے (زیور) دے چې په غاړه کښې اچولے شي.

**وږی** :- (و / وو + ګ /ژ + ئ) (اس ، مو) د وسپنې یوه کړه (حلقه) چې د ژرندې څرخ پرې مضبوطولے شي.

**وږئ** :- (و + ګ /ژ + ئ) (اس ، مو) د کاریز پشته چې ورانه شوې وي او بیا سر دوباره رغولے شي.

**وږے** :- (و + ګ /ژے) (اس ، مذ ، ج ـــ ږي) د جوارو خوشه ، وګے ـ د انګورو خوشه ـ د بجلۍ د هیتړ هغه برخه چې د وږي په شان وي او ګرمېدونکے تار ترې چاپېره وي ـ د اسمان په دولسو برجونو کښې د یو برج نوم ـ سنبله.

**ـــ د انګور** :- (ـــ د ، ا + ن + ګو + ر) (پ تر ، اس ، مذ) د انګورو خوشه.

**ـــ کول** :- د جوارو وغېره په بوټي کښې د جوارو خوشه پېدا کېدل ـ لکه : د جوارو فصل وږي کړې وي.

**وږے** :- (و + ګے / ژے) (اس، مذ، ج ـــ ږي) د غنمو یا د اوربشو یوه خوشه ، د شمسي کال اتمه میاشت ، سنبله.

**وږے** :- (و + ګ /ژے) (صف ، اس ، مذ ، ج ـــ ږي) هغه چې ګېډه ئې خوراک غواړي ـ ګرسنه ـ وږے د ډوډو تېار اوري (متل) ـ مشتاق ، خواهش لرونکے لکه : د مینې وږے.

**ـــ ورځ کول** :- وږسترګ توب کول ـ حرص ښکاره کول.

**ـــ تږے** :- (ـــ ت + ګے / ژے) (پ تر ، صف ، اس ، مذ ، ج ـــ ي) هغه سړے چې هم ئې ګېډه تشه وي (خوراک غواړي) او هم اوبۀ غواړي نهار نهور ـ وچې شونډې ـ ډېر حرصناک ، حرصي.

وږه تږیه ! څۀ به وخورې د سوې له سرېه ـ (متل).

**ـــ کېدل** :- د ګېډې خالي کېدل او خوراک غوښتل ـ ګرسنه کېدل ، لوږې اخستل

**ـــ ،،بودل،، د کوم څیز** : حاجتمند ،،بودل،، ، غرضي ،،بودل،، لکه : زۀ دې د دولت اوږے نۀ یم.

**ـــ چن** :- (ـــ چ + ن) (پ تر ، اس، مذ، مو ـــ ه) وږي ټولوونکے ، خوشه چین.

**ـــ چې** :- (ـــ چے) (و ـــ وږېچن).

**وږیز** :- (و + ګے / ژے + ز) (اس ، مذ) د ښځې د ګېډه کېدلو (حمل) په اوومه میاشت د ګېډې مالش کونه.

**وږئ ګل** :- (و + ګ /ژ + ئ + ګ + ل) (اس، مذ) یو قسم غرئیز بوټے دے.

**وږکے** :- (و / وو + ګ /ژ + کے) (اس ، مذ) یو قسم بوټے دے ـ چې د اوږے په شان وي.

**وږمیلے** :- (و + ګ /ژ + مي + لے) (پ تر، صف) وږم واله ، بوئي ناک ، خوشبویه څیز چې د بویولو دپاره پکارولے شي.

**ـــ کېدل** :- خوشبویه کېدل ، معطر کېدل.

**وږېره** :- (و + ګے / ژے + ر) (اس ، مو) د زناه ؤ د ګېډې مالش.

**وس** :- (و + س) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) طاقت ، زور کوښښ ، سعي.

**په خپل** ـــ :- (پ ، خ + پ + ل ـــ) په خپل ټول کوښښ ، په خپل ټول زور لګولو.

**ـــ چلول** :- (و ـــ وس کول).

**ـــ چلېدل** :- زور رسېدل ، په طاقت کښې ،،بودل،،.

**ـــ رسېدل** :- زور چلېدل ، طاقت رسېدل.

**ـــ کول** :- پوره کوښښ کول ، (خپل ټول) زور لګول ، د زور نه کار اخستل.

**وس** :- (و + س) (اس، ظر) اوس ، په دې ساعت ، په دې درنګ ، نن صبا ، په حاضر وخت یا زمانه کښې.

**په ـ کښې** :- (پ ـ کې) په طاقت کښې دننه ، د زور مطابق.

**په ـــ پر** :- (پ ـــ پ + ر) (پ تر ، تف) تر خپله زور ، قوته پورې ، ذمه دار.

**په ـ پرده** :- (پ ـــ پ ر + دَ) (پ تر) ذمه واري تر وسه یا زور قوت پورې وي. لکه : بنده په وس پر ده ،، پړ ده ،، ، هم وائي.

**د ـــ نه / څخه بهر** :- (پ تر) د طاقت نه باهر ، د زور قوت نه په هورته.

**ـــ خلاصېدل** :- زور قوت نۀ پاتې کېدل ـ ګېډه نۀ مړېدل ـ د جوع البقر په مرض اخته کېدل چې په کښې بني ادم خوراک کوي او مړېږي پرې نه.

**ـــ کول ، په چا باندې** :- رشک کول ، غبطه کول ، یخساک کول ، په سترګو کښې اخیستل ـ لکه : فلاني وس را باندې وکړ ، تاوان را پېښ شو ـ تاکید کول ، د کوم مقصد دپاره خپل پوره کوښښ کول.

**وساطت** :- (و + سا + ط + ت) (ع، اس، مذ) واسطه ، وسیله ، ذریعه.

**وسائل** :- (و + سا + ئې + ل) (ع ، اس ، ج) د ،، وسیله ،، جمع ده ـ وسیلې ، ذریعې

**دژوند ـــ** :- (د ، ژو + ن + د ـــ).

**دژوندانهٔ ـــ** :- (د ، ژو + ن + دا + نۀ ـــ) (ع پ تر ، اس ، ج) د معاش ذریعې ، د ژوند د ضروریاتو د پوره کولو دپاره د امدن ذرائع.

**د کار ـــ** :- (د + کا + ر ـــ) (پ تر ، اس ، ج) د کوم کار کولو دپاره ذرائع یا اسباب

**د کتلو او اورېدلو ـــ** :- (د ، ک + ت + لو ، او + د + ا + ؤ + رې + د + لو ـــ) (ع پ تر ، اس ، ج) هغه څیزونه کوم چې (په تعلم کښې) د کتلو او د اورېدلو دپاره پکارولے شي ـ (لکه نقشې ، تصویرونه ، ریکارډر ، فلم وغېره).

**وسپن** :- (وُ + س + پ + ن) (سابقه) د پښتو سابقه ده ـ نورو الفاظو سره لګولے شي ـ د اوسپنې معنې شیندي.

**ـــ تورے** :- (ـــ تو + ګے / ژے) (پ تر ، اس، مذ، ج ـــ ږي) د لوهارانو یو اوزار دے.

**ـــ خړے** :- (ـــ خ + ړے) (پ تر ، اس، مذ، ج ـــ ړي) د اوسپنې زنګ.

**وسپنه** :- (و + س + پ + نَ) (اس، مو، ج ـــ نې) اوسپنه ، اهن ـ مجازاً : کلک ، مضبوط.

**وسپنیز** :- (و + س + س + نې + ز) (پ تر ، صف ، مذ ، م ـــ ه) د وسپنې نه جوړ شوے

**وست** :- (و + س + ت) (اس، مذ، ج ـــ ونه) څیز، شے ـ د دوکانداری سامان.

**ثیز ـــ** :- (ت) سي + ز ـــ) (پ تر،اس،مذ،ج، ونه ـــ ونه) د دواړو لفظونو تقریباً یو شان معنې دي.دویم لفظ د تاکید دپاره راوستے.ثیز پز.لکه :- که خر ثیز وست دې پکار وي نو...

**وست** :- (و +س + ت) (اس،مذ،ج ـ ونه) فائده ، نفع ، ګټه.

**وستار** :- (و + س + تا +ر) (اس ،مذ،ج ـــ ونه) سامان ، متاع ، وست .د دوکان د خرڅ ثیزونه.

**وستري** :- (و + س + ت + ري) (صف ، ج) وروستني ، اخریلکه : وستري خبرونه

**ـــ ورځ** :- اخریني ورځ ، مجازاً : د قیامت ورځ. ,, باور په خدا ے په وښتو .. . او په وستریٔ ورځ... ،،. (خبرالبیان).

**وسترے** :- (و + س + ت + رے) (اس،ظر) وروستے ، وروستنے ، اخري.

**وستربل** :- (و + س + ت + ر + ب + ل) (اس ،ظر) بیا ، وروسته.

**وستل** :- (و + س+ ت + ل) (لاحقه) مصدري لاحقه ده .د بوتللو وغیره معنې ورکوي.را ، ور ، در سابقې ورسره لګولے شي.

**وستل** :- (و + س + ت + ل) (اس،مذ ، ج ـــ ونه) د کوم جماعت یا انجمن د ټولیدو ځا ے ، ټولنځے.

**وستلے** :- (و + س + ت + لے) (پ تر،اس،مذ) د اوسېدو ځا ے ، مقام ، د غونډې کولو ځا ے.

**وستون** :- (و + س + تو + ن) (اس،مذ،ظر) د ثیزونو وستونو د کېښېښودلو کوټه.د مال متاع ځا ے ، تحویل خانه.

**وسته** :- (و + س + ت) (اس ، مو ، ج ـــ تې) بند ، سد ، بند ، شپول ، د کوم ځا ے نه چاپېره بند ، چې د نورو دپاره ممنوع وي.

**وسته** :- (و + س + ت) (اس ، مو ، ج ـــ تې) ځا ے ، موضع.

**ـــ کول** :- ځا ے نه بند یا شپول چاپیره کول ، ممنوع کول.

**ـــ ماتول** :- بند ماتول ، شپول لرې کول ، ممانعت لرې کول.

**وسته** :- (و + س + ت) (اس ، مو ، ج ـــ تې) تالاؤ ، تالاب.

**وسته** :- (و+س+ت) (اس،مو،ج ـــ تې) مال متاع، دکورسامان،ثیز،وست.

**وسخ** :- (و + س + خ) (ع ، اس ، مذ) خیره ، ناپاکي ، پلیتي.

**ـــ تویه ول** :- خیره لرې کول ، خیره صفا کول.

**وسط** :- (و + س + ط) (ع ، اس ، ظر ، مذ ، ج ـــ ونه) مېنځ ، درمیان ، میان ، قلب مرکز.

**وسطه** :- (و + س + طَ) (ع ،صف،مو) د ,, وسط ،، تانیثي شکل دے.

**وسطي** :- (و + س + طي) (صف) د مېنځ ، درمیانه ، د مرکز ، مرکز یا مېنځ سره تعلق لرونکے.

**قرونِ ـــ** :- (ق + رو + ن ـــ) د پخواني او نني زماني تر مېنځه زمانه ، د مېنځ زماني پېړۍ.

**ـــ ایشیاء** :- (ـــ اې + ش + یا).

**ـــ اشیا** :- (ـــ آ + ش + یا) (اس،ظر) د ایشیا د مېنځ علاقه یا ملکونه.

**وسع** :- (و + س + ع) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ عې) پلن والے ، فراخي ، کشادګي ، ارت والے.

**وسعت** :- (و +س + ع + ت) (ع ،اس ،مذ ،ج ـــ ونه) پلن والے ، ارت والے ، کشادګي.

**ـــ موندل / میندل** :- ارتېدل او پلنېدل ، په رقبه وغیره کښې لوئېدل ، خورېدل ، ګنجائش زیاتېدل ، کشاده کېدل.

**ـــ نظري** :- د نظر کشادګي ،(د تنګ نظرۍ ضد) لوے زړۀ توب.

**ـــ ورکول** :- خورول ،ارتول او پلنول ، کشاده کول .وسیعه کول ، ګنجائش زیاتول.

**وسعه** :- (و + س + عَ) (اس،مو،ج ـــ عې) وس ، زور قوت ، استعداد.

**په خپله ـــ** :- (پ ، خ + پ + لَ ـــ) (پ تر، تف) په خپله وس ، د خپل زور قوت مطابق ، د خپل استعداد سره سم.

**وسق** :- (و + س + ق) (ع،اس،مذ ،ج ـــ ونه) د اوښ د بار همره یوه پېمانه ده.

**وسکه** :-(و + س + کَ) (تف) له دې کبله ، له دې سببه ، په دې وجه ، ځکه.

**وسکیزه** :- (و + س + کي + زَ) (اس،مو،ج ـــ زې) د تنبو یا د کږدۍ ستن . ثکیز، وثکیز.

**وسلو** :- (و + س + لو) د ,, وسلې ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**د ـــ رقابت** :- (د ـــ ر+ قا + ب + ت) (پ تر،اس،مذ ،ج ـــ ونه) د وسلو مقابله ، په وسلو کښې د یو بل نه د وړاندې کېدلو کوښښ.

**وسلوال** :- (و+س + ل + وا + ل) (پ تر،اس،صف ،مذ ،ج ـــ ان) وسله لرونکے ، وسله بند.

**وسلواله** :- (و +س+ل+وا+لَ) (پ تر،اس، صف ، مو، ج ـــ لې) د ,, وسلوال ،، تانیث دے.

**ـــ قواوې** :- وسله لرونکي قوتونه ، وسله بند لښکرې.

**وسله** :- (و + س + ل) (اس مو ، ج ـــ لې) اسلحه ، د جنګ سامان ، (توره ، ټوپک وغیره).

**ـــ اغوستل** :- وسله بند کېدل.

**ـــ ایښودل / کښېښودل** :- د جنګ نه لاس اخیستل ، ماتې منل.

**داور ـــ** :- (د ، او+ ر ـــ) (پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ لې) د جنګ هغه وسله چې بارود وغیره په کښې استعمالېږي او د ګذار په وخت د اور لمبه کوي . لکه ټوپک توپه وغیره.

**دبرید او یرغل ـــ** :- (پ تر ، اس ، مو ، ج ـــ لې) د حملې کولو وسله ، هغه وسله چې د حملې دپاره وي، پکارېدونکې اسلحه.

**تخریبي ـــ** :- (ت + خ + ري+بي ـــ) (فپ تر،اس،مو ، ج ـــ لې) هغه وسله چې د تخریبي (وراني) د کارونو دپاره پکارولے شي.

**ـــ دار کول** :- وسله بند کول ، په وسله پور کول.مسلح کول ، وسله وال کول.

**ـــ بنده** :- (ـــ ب + ن + د) (پ تر، اس،مو،ج ـــ دې) د ,, وسله بند ،، تانیث دے

**ـــ دار** :-(ـــ دا +ر) (پ تر،اس،صف،ج ـــ ان) وسله لرونکې ، وسله بند ، وسله وال.

**ـــ خرثوونکي** :- (ـــ خ + ر + (ت) س + وو+ ن + کي) (پ تر،اس،فا،ج ـــ کي) د وسلو سوداګر ، اسلحه فروش.

**ـــ ګړے** :- (ـــ ګ + ړے) (پ تر،اس،مذ ،ج ـــ ړي) سلاح انداز ، د وسلې د ویشتو ماهر ، د وسلې د استعمال مړنے.

**ـــ غورزول / کښېښودل** :- وسله په زمکه کښېښودل ، ځان بې وسلې کول. مجازاً: د مقابلې یا جنګ څخه لاس اخیستل ، ماتې منل.

**ـــ اخیستل** :- د جنګ دپاره تیارېدل، وسله بند کېدل ، د چا نه وسله تر لاسه کول ، بې وسلې کول.

**بې ـــ کول** :- (و ـــ وسله اخیستل).

**ـــ بند** :- (ـــ ب + ن د) (پ تر،صف،مذ،مو ـــ ه) وسله تړلے ، هغه چې خپله وسله ئې په بدن تړلې وي.وسله لرونکے ، په وسله پُور.لکه : وسله بند لښکر.

**ـــ تون** :- (ـــ تو + ن) (پ تر،اس،مذ،ج ـــ ونه) د وسلو د کښېښودلو ځا ے یا کوټه. اسلحه خانه.

**وسلېدل** :- (و + س + لې + د + ل) (مص) چاودل ، درز یا شگاف پیدا کېدل.

**وسمت** :- (و + س + م + ت) (ع ، اس ، مذ) عیب.

له وسمتَ سلامت له کیني بغضه
مهتمم پـه نـالایقه گفتار نهٔ وم (حافظ)

**ــــ کښېښودل** :- تهمت کښېښودل ، عیب لگول ، تور لگول ، داغ لگول.

**وسمن** :- (و + س + م + ن) (پ تر ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) د وس څښتن ، طاقت واله ، زور لرونکے ، شته من.

**ــــ کېدل** :- طاقتور کېدل ، زورور کېدل ، د زور خاوند کېدل . شته من کېدل.

**ــــ مه شې** :- (جمله) د ښېرې په طور وئیلے شي . خداے دې درله وس نهٔ درکوي

**وسمني** :- (و + س + م + ني) (پ تر ،اس ،مو) وس لرنه ، طاقت لرنه ، زور لرنه ، شته مني.

**وسمه** :- (و + س + مَ) (اس ، مو ، ج ـــ مې) خضاب ، د نیل مبېده کړې پاڼې چې د وېښتو د رنگولو دپاره پکارولے شي . د نیل مبېده کړې پاڼې نکریځو سره هم گډولے شي . ځکه ځینې وخت نکریځو ته هم وسمه وائي.

**ــــ لگول** :- وېښتهٔ په وسمه تورول.

**وسو** :- (و + سو) (فعل) د ,,سول ،، مصدر څخه د ماضي مطلق فعل ، وسوځېد ، وسه.

**وسو** :- (و + سو) (اس ،جم) جمامه ، جمیا.

**وسواس** :- (و + س + وا + س) (اس ،مذ ،ج ـــ ونه) وهم ، فکر ، وسوسه ، هغه (بده) خبره کومه چې په زړهٔ کښې راپېدا شي . د شېطان پېدا کړے خراب خیال.

که دې یار دے هغه یار دے
چې خپلولي ئې بې وسواس (خوشحال)

گمان ، شک.

**ــــ کول** :- وسوسه په زړهٔ کښې راوستل . وهم کول ، بې بنیاده فکر او غم کول په زړهٔ کښې شک راوستل.

**وسواسه** :- (و + س + وا + سَ) (پ تر ،اس ،مو ،ج ـــ سې) (و ـــ وسوسه).

**ــــ اچول** :- وسوسه اچول ، وهم پېدا کول ، شک شبه پېدا کول.

**وسواسي** :- (و + س + وا + سي) (ف تر ،صف) وهمي ، وهم کوونکے.

**وسـواسـنه** :- (و + س + وا + س + ن + ړَ) (پ تر ،اس ،صـف ،مو ،ج ـــ ړې) د ,,وسواسي ،، تانیث دے.

**وسوسه** :- (و + س + و + س) (ع ،اس ،مو ، ج ـــ سې) وهم ، شک ، د شک په وجه ویره ، گمان.

**وسواسې** :- و + س + و + سې) د ,,وسوسه ،، جمع ده . د ,,وسوسه ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ــــ کول** :- وسواسونه کول ، شک شبهې کول ، گمانونه کول ، همونه کول.

**گیلې ـــــ** :- (گې + لې ـــــ) (پ تر ،اس ،مو ،ج) شکایتونه او گمانونه یا وهمونه.

**ــــ کېدل** :- وهمي کېدل ،وهمونه کول ،په زړهٔ کښې شک شبهې پېدا کېدل.

**وسه** :- (و + س) (اس ،مو) د پشکال باران.

**وسه** :- (و + سَ) (اس ، مو) د ,,وسع ،، بدل شکل دے . وس ، طاقت ، زور ، استطاعت.

**د ــــ کېدل** :- طاقت لرل ، زور قوت لرل ، قدرت لرل . مالي استطاعت لرل . مقدور لرل.

**په ــــ کښې بودل ،،** :- د کوم څیز طاقت یا زور مقدرو نهٔ لرل.

**وسه** :- (و + سَ) (اس ،مو) هغه لښتے چمکے چې په چت اچولے شي . د چت د پوښلو لرگي.

**وسه** :- (و + سَ) د ,,وس ،، بدل شکل دے . ځینو مغیره ؤ تورو سره راځي.

**تر ــــ وسه** :- (ت + ر ـــ و + سَ) (پ تر ،تف) د هر چا تر زوره یا کوښښه ، خپل پوره زور یا کوښښه پورې.

**تر خپله ــــ** :- (ت + ر ، خ + پ + ل ــــ) (پ تر) څومره چې خپل وس کېدے شي څومره چې ئې زور طاقت وي . څومره کوښښ چې کېدے شي.

**وسے** :- (و + سے) د ,,وسه ،، جمع ده . د ,,وسه ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**د ــــ نه پوره نهٔ بودل ،،** :- د وس نه باهر ,,بودل ،، .

**وسیع** :- (و + سي + ع) (ع ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) وسعت لرونکے ، ارتاو پلن . ارت بېرت ، ډېر خوور وور . ډېر گنجائش لرونکے ، پراخ ، کشاده.

**ــــ کول** :- وسعت ورکول ،ارتول پلنول ،ارت پرت کول ،کشاده کول ،خورول.

**ــــ کېدل** :- ارت او پلن کېدل ،ارت بېرت کېدل (تر لرې لرې) خورېدل . کشاده کېدل ، پراخه کېدل ، فراخ کېدل.

**ــــ نظره** :- (ـــ ن + ظ + ر) (عپ ،تر ،صف) هغه چې نظر ئې تر لرې پورې رسي . دوراندېښه ، لوړ خیال واله.

**وسیله** :- (و + سي + لَ) (ع ،اس ،مو ،ج ـــ لې / وسائل) ذریعه و سوب ، سبب ، باعث امدادي مرستیال ، سفارشي.

**ــــ ساز** :- (ـــ سا + ز) (عف تر ،صف ،مذ ،مو ـــ ه) وسیله جوړوونکے ، ذریعه پېدا کوونکے . لکه : خداے لوے وسیله ساز دے.

**په ــــ** :- (پ ــــ) (پ تر ،تف) په ذریعه ، په سبب.

**ــــ گرځول** : سبب گرځول ، ذریعه گرځول ، سوب کول.

**بې ــــ** :- (بې ــــ) (پ تر ،صف) (بل) ناترسه ، بې ښې لکه : وئیل ئې ډېر بې وسیلې انسان ئې (چې مدد راسره نهٔ کوې).

**ــــ کول** :- وسیله گرځول ، ذریعه گرځول.

**ــــ کېدل** :- وسیله گرځېدل ،ذریعه جوړېدل ،په کوم کار کښې مرستیال کېدل.

**ــ لرل** :- ذریعه لرل ،سوب لرل ،سفارش لرل ، مرسته کوونکے.

**ــــ گر** :- (ـــ گ + ر) (و ـــ وسیله ساز).

**ــــ ناک** :- (ـــ نا + ک) (و ـــ وسیله دار).

**ــــ دار** :- (ـــ دا + ر) (عف تر ،صف ،اس ،ج ـــ ان) وسیله لرونکے ، ذریعه لرونکے.

**ــــ ناکه** :- (ـــ نا + کَ) (و ـــ وسیله داره).

**ــــ داره** :- (ـــ دا + رَ) (فپ ،تر ،صف ، مو ،ج ـــ رې) د ,,وسیله دار ،، تانیث دے

**ــــ داري** :- (ـــ دا + ري) (فپ ،تر ،اس ،مو) وسیله لرنه ، ذریعه لرنه ، اسباب لرنه

**ــــ معاش** :- (ـــ م + عا + ش) (عف تر ،اس ،مو) د ژوندانهٔ ذریعه ، د گټې ذریعه

**وسیلې** :- (و + سي + لې) د ,,وسیله ،، جمع ده . د ,,وسیله ،، بدل شکل دے . چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**بې ــــ** :- (بې ـــ) (پ تر ،تف) بغېر د وسیلې څخه ،بغېر د ذریعې نه ، هغه سړے چې هېڅ وسیله نهٔ لري.

**وسیم** :- (و + سي + م) (ع ، صف ، مذ ،مو ـــ ه) ښکلے ، ښائسته د نارینهٔ

په نومونو کښې راځي.

**وسي** :- (و + سي) (**فعل**) د "سول"، مصدر نه د شکيه يا د تمنائي فعل وسوځي

**وسئ** :- (و + س + ئ) (اس ، مو) هوسئ ، آهو (ماده).

**وسې** :- (و + سې) (اس ، مذ ، ج ــ سي) هوسې ، آهو.

**د ــ نه باهر** :- د وس څخه باهر ، د زور قوت نه وتې.

**وش** :- (و + ش) (لاحقه) د فارسي لاحقه ده. نورو اسمونو سره لګي او په شان ، په رنګ وغيره ، معني شيندي. لکه : پريوش.

**ــ کول** :- وده کول ، نشوونما موندل.

**وش** :- (و + ش) زهر.

وش د مار نۀ ځي له ماره
نۀ بدخوئي ځي له بده کاره (سعيد ختټک)

**وش** :- (و + ش) (و ــ وښ).

**وش وش** :- (و+ ش + و + ش) (حرف) د خوشحالۍ يا د شاباسي توري دي. واه واه ، وخ وخ.

**وشتمار** :- (و + ش + ت + ما + ر) (پ تر ، اس ، صف ، ج ــ ان) راپاروونکې ، تحريک ورکوونکې ، راپورته کوونکې.

**وشتول** :- (و + ش + ت + ؤ + ل) (مص) پارول ، تحريک ورکول ، راپورته کول ، ترغيب ورکول.

**وشته** :- (و + ش + ت) (اس، مو، ج ــ تې) ټوقه ، ټوکه ، مذاق ، تسخير. د ټوقو ټيز ، مسخره.

**ټوقه ــ** :- (ټو + قَ ــــ) (پ تر، اس، ج ــ ې) د دوارو لفظو يو شان معنیٰ ده. ټوقه ټقاله. معمولي خبره يا کار. لکه : په غرۀ ختل خو ماته ټوقه وشته ښکاري.

**وشتې** :- (و + ش + تې) (اس ، مو، ج) د "وشته"، جمع ده. ټوقې ، ټوکې مسخرې.

**ټوقې ــ** :- (ټو + قې ــ) (پ تر، اس، مو، ج) د دوارو لفظونو يو معنی دي. دويم لفظ د زور او تاکيد دپاره راځي. ټوقې او مذاق ، ټوکې خندا. مسخرې او مذاق، اسان کار، بې وقره کار ، غير اهم کار.

**ــ مسخرې** :- (ــ م +س + خ + رې) (پ تر، اس، مو، ج) (و ــ ټوقې وشتې).

**ــ کول** :- ټوقې کول ، تمسخر کول ، مذاق کول.

**ــ وهل** :- (و ــ وشتې کول).

**وشتې** :- (و + ش + تې) (اس، مذ) يو قسم ګياه يا بوټی دی چې د څاروؤ خوراک دی.

**وشکې** :- (و + ش + کې) (اس، مذ، ج ــ کي) واښۀ ، واښه ګې ، سرګړې په وشکې مه ګېه دغرۀ سړې په سړي. (متل).

**وشلېګ** :- (و + ش + لې + ګ) (اس، مذ، ج ــ ونه) د تنبو يا د کږدۍ ستن.

**وشم** :- (و + ش + م) (حرف) حرف دی. په شان ، په رنګ ، مانند معنې شيندي

**وشمه** :- (حرف) (و ــ وشم).

**وشند** :- (و + ش + ن + د) (اس، مذ، مو ــ ه) هلک چې ځوانۍ ته نزدې وي. مراهق.

**وشنده** :- (و + ش + ن + د) (و ــ وشند).

**وشنده** :- (و + ش + ن + د) (**فعل**) د "شندل"، مصدر نه د امر فعل ، ونوله.

**وشو** :- (و + شو) د واشۀ (واښۀ) بدل شکل دی چې د مغيره ؤ تورو سره راځي. (يو پوهان ئې معنیٰ د "تانده څانګه"، ليکلې ده).

**وشو** :- (و + شو).

**وشۀ** :- (وُ + شۀ) (**فعل**) د "شول"، مصدر نه د ماضي (واحد غائب) **فعل**.

**وشو** :- (و + شو) (**فعل**) د "شول"، مصدر نه د ماضي (جمع متکلم) **فعل**.

**وشو** :- (و + شو).

**وشول** :- (و + شو + ل) (**فعل**) د "شول"، مصدر نه د ماضي (جمع غائب) **فعل**.

**وشوله** :- (و + ش + ؤ + لَ) (و ــ وشوه).

**وشولې** :- (و + ش + ؤ + لې) (**فعل**) د "شول"، مصدر نه د ماضي (جمع) **فعل**.

**وشوم** :- (و + شو + م) (**فعل**) د "شوم"، مصدر نه د ماضي (واحد متکلم) **فعل**

**وشوه** :- (و + ش + وَ) (**فعل**) د "شول"، مصدر نه د ماضي (مؤنث واحد غايب) **فعل**. منلې ! ما ومنل. تۀ منې ؟ تا ومنل ؟

**وښ** :- (و + خ/ش) (سابقه) د "واښۀ"، لنډ شکل دی. د سابقې په طور نورو الفاظو سره راځي.

**ــ خور** :- (ــ خو + ر) (پ تر، صف، مذ) واښۀ خوړونکې ، هغه ځناور چې په وښو پائي. (جمع ئې وښ خوارۀ ده ، او مؤنث ئې وښخوره).

**ــ خوارۀ** :- (ــ خ + وا + ر) (پ تر ، صف ، ج) د "وښ خور"، جمع ده.

**ــ خوره** :- (ــ خ + و + رَ) (پ تر ، صف ، ج ــ رې) د "وښ خور"، تانيث دی

**وښ** :- (و+ خ/ش) (اس، ج) (ځدران) لاړې ، د خولې اوبۀ.

**وښ** :- (وُ + خ/ش) (اس ، جم) زهر ، سم ، وش.

وښ د مار نۀ ځي له ماره
نۀ بد خوئي ځي له بدکاره (سعيد ختټک)

**ــ پرې نه تلل** :- د زهرو اثر پرې نۀ کېدل ، د زهرو (لکه د لړم) پرې اثر نۀ کول

**وښخور** :- (و + خ/ش + خو + ر) (و ــ وښ خور).

**وښخوره** :- (و + خ/ش + خ + رَ) (و ــ وښ خوره).

**وښخوارۀ** :- (و + خ/ش + خ + وا + ر) (و ــ وښ خوارۀ).

**وښبه** :- (و + خ/ش + بَ) (پ، تر، اس، مذ) واښۀ رېبونکې، واښۀ خرڅوونکې.

**وښته** :- (و + خ/ش + ت) (اس ، مو) د غرئيزو وريجو يو قسم دی چې د پخېدو نه پس ئې رنګ نسواري شي.

**وښته** :- (و + خ/ش + تَ) (اس ، مو ، ج ــ تې) ګل مهره او مرجان چې زنانه ئې په تندي يا په سينه زوړندوي.

**وښتې** :- (و + خ/ش + تې) (و ــ وښته).

**وښتې** :- (و + خ/ش + تې) (اس، مذ، ج ــ تي) يو غرئيز بوټی دی چې جاروګانې ترې جوړولې شي.

**وښکالې** :- (و + خ/ش + کا + لې) (اس ، مذ ، ج ــ لي) د انګورو خوشه.

**وښکل** :- (و + خ/ش + ک + ل) (مص) اوښکل ، اباسل ، وېستل. باهر کول ، خارجول. غوره کول ، انتخاب کول. د ښينک نه روپۍ را وباسل ، ؤس.

**وښکلې** :- (و + خ/ش + ک + لې) (پ تر ، اس ، مف ، ج ــ لي) اوباسلې ، وېستلې ، اېستلې ، باهر کړې.

**ــ توره** :- (ــ تو + رَ) (پ تر ، اس ، مو ، ج ــ رې) هغه توره چې له تيکي باهر را اېستلې شوې وي. جنګ يا ګذار ته تياره توره.

**وښکونکې** :- (و+خ/ش+کو+ن + کې) (پ تر ، اس ، فا ، ج ــ کي) اوباسونکې ، وېستونکې ، باهر کوونکې.

**وښکۀ** :- (و + خ/ش + ک) (حمص) وښکنه ، اوباسنه ، وېستنه.

**وښکه** :- (و + خ/ش + ک) (اس ، مو ، ج ــ کې) اوښکه ، اوښه ، اشک.

**وبنکه** :- (و + خ/ش + ک ) (فعـل) د ,, وبنـکل ،، مصـدر نـه د ماضـي فعـل ، وباسئ.

**وبنکے** :- (و + خ/ش + کے ) (اس،مـذ ،ج ــ کـي ) د انګورو وغيـره خوشـه ، وبنکالے.

**وبنکے** :- (و + خ/ش + کے ) (اس ، مذ ، ج ــ کي ) د خولې (شونډو ) ګوټ.

**ـــ کړول** :- کنايتاً مسکے کېدل ، موسکېدل.مرګ ته نژدې کېدل.

**وبنند** :- (و + خ/ش + ن + د ) تانده ، بنېرازه ، هغـه سړے چې د ملا کوږ والے وئه لري.نيغ ګرځېدونکے.

**وبنو** :- (و + خو/شو ) د وابنـهٔ بدل شـکل دے .د مغيره ؤ تورو سره راځي .

لکه : د وبنو پنډه .

**وبنيانه** :- (و + خ/ش + يا + نه ) ( پ تر ، اس ، ظر ، مو ، ج ــ نې ) هغـه ځـا ے چې په وبنو شين وي.سبزه زار ، رک ، د څر ځا ے.

**وبنېدل** :- (و + خې/شې + د + ل ) (مـص ) وبنـې وبنـې کېـدل ، کـوږ کـوږ تلـل ، کونټې کېدل.

**وبنېدونکے** :- (و + خې/شې + دو + ن + کے ) ( پ تر ، اس ، فـا ، ج ــ کـي ) پـه لاس کنبـې بنـوئيدونکے ، هغـه بنـوئيدونکے څيـز چـې د تړلـو پـه وخـت بنـوئېږي.

**وبنے** :- (و + خے /شے ) (اس ، مـذ ، ج ــ بنـې ) د لاس کـړه ( کـالے ) غـټ بنګړے ، کړه

دا هلال دے چې ليدے شي په شفق کنبې

که پـــه لاس د ګل اندامې سپين وبنے دے (رحمان بابا )

د وسپنې وغېره حلقه يا کړه .کوږ ، راکونټې ، راتاؤ شوے.

چې په لاس کا ګل اندامه سپين وبنے

لـــــه غېرته شــــي هـــلال وبنے وبنے (حميد )

**ـــ وبنے کېدل** :- کوږ کوږ تلل ، کونټې کونټې کېدل، پېچ و تاب خوړل.

**وبنے** :- (و + خے / شے ) (اس ، م،ج ــ بنې ) يو غرئيز بوټے دے.

**وبنے** :- (و + خے / شے ) (اس،مـذ ) د وريجـو يـو قسـم دے چـې ورتـه تـورې وريجې هم وائي.

**وبنيه** :- (و+خ / ش+ي ) (فعل ) د ,, بنيل ،، مصدر نه د ماضي فعل وبنايه.

**وصـاف** :- (و + ص + صـا + ف ) (ع،اس،صـف،مذ ، مـو ـــــه ) ډېـر وصـف کوونکے ، ډېر صفت کوونکے .

**وصال** :- (و + صا + ل ) (اس ، مذ ، ج ــــ ونـه ) ملاوېدنـه ، يـو ځـا ے کېدنـه ، ملاقات کونه .هم بستري ، کور والے . مړ کېدنه ، وفات ، عموماً د کوم بزرګ سړي په حقله وئيلے شي .(تصوف ) په وحدت کنبې فنا کېدنه.

**وصالت** :- (و+صا+ ل+ ت ) (عپ ، تر،اس ،مذ ) د ,, وصل ،، بدل لفظ دے .

**وصايا** :- (و + صا + يا ) (ع ،اس ، ج ) د ,, وصيت ،، جمع ده.وصيتونه ، (و ـــــ وصيت ).

**وصايت** :- (و + صا + ي + ت ) (ع ، اس ، مـذ ) سرپرستـي ، انتظـام ، وصيت کونه

**ـــــ ورکول ، چا ته** :- سرپرست ګرځول ، انتظام ورسپارل.

**وصـف** :- (و + ص /ص ) + ف ) (ع ، اس ، مـذ ، ج ـــــ ونـه /اوصـاف ) صـفت ، تعريف ، خوبي ، بنـه والے ، خوئي ، خصلت، عـادت ، هنر ، کمـال ، پېژندنه / پېجندنه ، شناخت.

**ـــــ کول / بيانول** :- خوبي بيانول ، بنهٔ والے ، بيانول ، تعريف کول.

**وصفي** :- (و + ص + في ) (عپ ، تر ، صف ) هغه چې وصف يا بنـهٔ والـي سره تعلق لري.وصف يا خوبۍ ته منسوب.

**وصـفيت** :- (و + ص + فـي + ي + ت ) (ع ،اس،مـذ ) د صـفت کولـو خاصيت ، صفت لرنه ، د صفت کولو فعل.

**وصـــل** :- (و + ص + ل ) (ع ،اس،مــذ ،ج ـــــ ونــه ) يــو ځــا ے کېدنــه، ملاوېدنه،ملاقات،معشوقې سره ملاوېدنه ، معشوقې سره يـو ځـا ے کېدنه،(د بېلتون او فراق ضد )کور والے ، مجامعت.

**ـــــ کول** :- ملاوېدل ، يو ځا ے کول ، د معشـوقې ځان سره يـو ځـا ے کول ، کور والے کول ، مجامعت کول.

**ـــــ کېدل** :- ملاوېدل ، يو ځا ے کېدل ، معشوقې سره يو ځا ے کېدل.

**د ـــ شپه** :- (د ــ ش + پ ) (عپ ، تر ،اس ، مو ، ج ـــ پې ) د ملاوېدلو شپه ، د ملاقات شپه ، هغـه شپه چې په کنبې عاشق او معشوقه سره يو ځا ے کېږي او کوروالے کوي.د کوروالي شپه.

**وصلت** :- (و + ص + ل + ت ) (و ـــــ وصل ).

**ـــــ کول** :- وصل کېدل ،معشوقې سره يو ځا ے کېدل. معشــوقې ســره همبستري کول.

**وصله** :- (و + ص +لَ ) (ع ، اس ، مـو ، ج ـــ لـې ) ټـاکئ ، پـه جامـه يـا پـه پېـزار د مرمت دپاره لګولې شوې ټکړه پېوند .

**وصـله** :- (و +ص + لَ ) (ع ،اس ،مـو،ج ـــ لـې ) د يـو ځـا ے کولـو علامـت .د کاغذ يا د ټوکي يوه ټکړه.

**وصلي** :- (و + ص +لي ) (صف ) وصل کوونکے ، ملاوېدونکے ،دوه يـو ځـا ے کړے کاغذونه چې خوش نويسان پرې د قطعو وغېره مشق کوي.

**وصـول** :- (و + صـو + ل ) (ع ،اس،مـذ ) د يـو څيز ،بـل څيـز تـه ور رسـېدنه ،رسـېدنه ، ملاوېدنـه ، رسـېدلے څيـز ، رسـېدلے رقم وغېـره .د رقـم وغېره رسېدنه.

**ـــــ کول** :- کوم څيز ، روپۍ وغېره د بل نه/ څخه حاصلول ، حال کول.

**ـــــ کېدل** :- کـوم څيـز يـا روپـۍ وغېـره د بـل نـه/ څخـه چاتـه ور رسـېدل ، حاصلېدل.

**وصولول** :- (و + صو +ل + ؤ +ل ) (مص ) (و ـــ وصول کول ).

**وصولېدل** :- (و + صو + لې + د +ل ) (مص ) (و ـــ وصول کېدل ).

**وصي** :- (و + صي ) (ع ،اس،مذ ) هغه سړے چې هغهٔ ته يا د هغهٔ په حق کنبې وصيت شوے وي. په وصيت باندې عمل کوونکے .کنايتاً حضرت علي کرم الله وجهه.

**ـــــ کول ، څوک** :-

**ـــــ درول ، څوک** :- څوک خپـل وصي ګرځول ، د کوم کار وغېره دپاره ، په وصيت کنبې ذمه داري يا اختيارمند ګرځول.

**وصيت** :- (و + صي + ي + ت ) (ع ، اس ، مـذ ، ج ـــ ونـه ، وصـايا ) د مرګ پـه وخت يا په کوم لوے سفر د روانېدو په وخت ، چې د خپلو روستو پاتې کېدونکو ته ، چې کوم کارونه وسپاري يا ووئيلے شي چې داسې داسې عمل به کوئ.وصيت بللے شي. په عربۍ کنبې نصيحت ته هم وائي.

**ـــــ کول** :- د مرګ په وخت ، يا په سفر د تللو په وخت ، ورستو پاتې خلقو تـه هدايات ورکول ، چې داسې داسې عمل به کوئي.

**ـــــ نامه** :- (ـــ نا + مَ ) (عف ،تر، اس ، مو ، ج ـــ مې ) هغـه ليـک چې پـه کنبې يو سړي ، د مرګ ، يا په سفر د تلل په وخت ، هدايات ليکلے وي .چې زما نه پس به داسې داسې عمل کوئ.

**شرعي ـــ نامه** :- (ش +ر+عي ـــ ) (عف،تر،اس،مو،ج ـــ مې ) هغه وصيت نامه کومه چې د شرعې سره سمه وي.

**وضـاحت** :- (و + ضـا + ح + ت ) (ع ، اس ، مـذ ، ج ـــــ ونـه ) تشـريح ، شرح او

تفصیل سره بیان ، واضح کونه.

**ـــ کول** :- تشریح کول ، شرح او تفصیل بیانول یا لیکل.

**پـه ـــ سـره** :- (پ ـــ س + ر )(عـپ ، تـر ، تـف ) پـه شـرح او تفصـیل سـره ، تشریحاً.

**وضاعت** :- (و +ضا+ ع + ت )(ع،اس،مذ ) بې عزتي ، سپکاوے ،شرمندګي ، خفت

**وضـع** :- (و + ض + ع )(ع ،اس ،مـو ، ج ـــ وضـعې/ اوضـاع) کښېښـودنه ،ترتیب ورکونه ـ طرز ، روش ، طور طریقه ، دستور شکل ، صورت ، کړهٔ وړهٔ ، تفریق ، کمونه، زېږونه ، ماشوم پېدا کونه.

**ـــ حمـل** :- (ـــ(ع) + ح + م + ل )(عـف ، تـر ، اس ، مـذ ) ماشـوم زېږونـه ، ماشوم پېدا کونه ، د ماشوم زېږېدنه.

**ـــ دار** :- (ـــ دا + ر )(عـف ،تر ، صف ، مذ ، مـو ـــ ه ) وضع لـرونکے ، د خپل طور طریقې او دود دستور پېروي کوونکے ـ ښهٔ شکل و صورت لرونکے.

**سیاسي ـــ** :- (س + یا + سي ـــ )(ع تر،اس،مو ) سیاسي حالات ، سیاسي طور طریقې.

**په ـــ فرق نهٔ راتلل** :- طور طریقې نهٔ بدلېدل ، د شکل او صورت په بنائست او د جامو وغېره کښې فرق نهٔ راتلل.

**بد ـــ** :- (ب + د ـــ )(عف تر ،صف ) بدشکله ، بې ډوله.

**ـــ کول** :- جوړول ، سازول ، ایجادکول ،تفریقول ، منها کول ،مُجره کول.

**ـــ کېدل** :- جوړېدل ، سازېدل ، منها کېدل ، تفریق کېدل.مُجره کېدل.

**ـــ قطع** :- (ـــ ق + ط + ع )(ع،تر،اس ،مو ) ظاهري شکل و صورت.

**ـــ قانون** :- (ـــ (ع ) قا + نو + ن )(و ـــ د قانون وضع ).

**دقانون ـــ** :- (د ، قا + نو + ن ـــ )(عپ،تر،اس ، مو )د قانون جوړونه.

**قانون ـــ کول** :-قانون جوړول.

**اجتماعي ـــ** :- اجتماعي صورت حال ، اجتماعي حالت.

**وضعه** :- (و + ض+ عَ )(و ـــ وضع ).

**وضعیت** :- (و + ض + عي + ي + ت )(ع، اس ، مذ ، ج ـــ ونه )حالت ، شکل و صورت، کېفیت.

**وضو** :- (و +ضو )(ع ،اس،مذ ) اودس ، ابدس ، د نمونځ دپاره په شرعي طریقه مخ لاس او پښې وغېره وینځل او په ځینو اعضاء لکه په سر مسح کول.

**ـــ کول** :- اودس کول ، ابدس کول ، ابدست کول ، په شرعي طریقه د ځینو اعضاء وینځل او په ځینو مسح کول.

**وضـوع** ::- (و +ضـو + ع )(ع،اس،مـذ ) وضـاحت ، صـفائي ، څرګندونـه ،وضاحت، صراحت ، تصریح ،ثبوت ، ګواهي.

**وضیع** :- (و +ضي + ع )(ع،صف ، مذ ، مو ـــ ه ) کمینـه ، رذیـل ، پاسـو ، کچوت

**وضیع** :- (و +ضي + ع )(ع،صف ) هغه څیز کوم چې چا تـه وسپارلے شي، سپارلے شوے څیز ، امانت.

**وضیمه** :- (و +ضي + مَ )(ع ،اس ،مو،ج ـــ مي ) د ولیمې ضد دے ـ د غم او د ماتم ډوډۍ ـ مطلق ضیافت و دعوت خوړه.

**وطاء** :-لتاړول ، چیختاړول ، یائمالول ، کوروالے کول ، مجامعت کول.

**وطـن** :- (و + ط + ن )(ع ، اس ، مـذ ، ج ـــ ونـه /اوطـان )خپـل ملـک ، د پېدا کېدلو او لوئېدلو علاقه یا ملک ـ (د بني ادمانو د اوسېدلو ځاے ).

**ـــ پالنه** :- (ـــ پا + ل + نَ )(عپ ، تر ، اس ، مو )د وطن وده او ترقي غوښتنه ، د وطن سره مینه لرنه ، د خپل وطن خېرخواهي.

**ـــ دار** :- (ـــ دا +ر )(عـف تـر ، صف ، اس ، ج ـــ ان ) وطن لـرونکے ، د یـو وطن اوسېدونکے ، هم وطن ، وطن پال.

**ـــ داري** :- (ـــ دا +ري )(عـف تـر ، اس ، مـو ) د وطـن سـره مینـه ، د وطـن طرفـداري ، هـم وطنـي ، د هـم وطنـي جذبـه ، د هـم وطنـه سـړي خېـر غوښتنه او ملګرتیا کونه.

**ـــ دوست** :- (ـــ دو + س + ت )(و ـــ وطن پرست ).

**ـــ دوستي** :-(ـــ دو + س + تي )(عپ تر ،اس،مو ) وطن سره دوستي ، خپـل وطن یا ملک سره مینـه ، د وطن ښېګړه غوښتنه.د خپـل ملک خېر خواهي.

**ـــ خواه** :- (ـــ خ + خوا + ه )(عف،تر،اس،صف،ج ـــ ان )(و ـــ وطن پرست).

**ـــ خـواهي** :- (ـــ خ + وا + هي )(عـف ، تـر ، اس ، مـو ) وطـن غوښـتنه ، د وطن خېر او ښېګړه غوښتنه ، د وطن طرفداري.

**ـــ پرستي** :- (ـــ پ + ر + س + تي )(و ـــ وطن پالنه ).

**ـــ فـروش** :- (ـــ ف + رو + ش )(عـف،تر،اس ، صـف ، ج ـــ ان ) وطـن خرڅوونکے ، ملک سره غداري کوونکے ، د ملک غدار.

**ـــ فروشي** :- (ـــ ف + رو + شي )(عـف ، تـر ، اس ، مـو ) د وطـن خرڅونـه ، ملک سره غداري ، د وطن د ښېګړې خلاف کار کونه.

**ـــ مالوف** :- (ـــ(ن) ما + لُو + ف )(عـف ، تـر ، اس ، مـذ ) هغـه وطـن یا ملـک چې سړے ورسره الفت یا مینه لري ـ خوږ وطن.

**وطنه** :- (و + طَ + نَ ) د ,, وطن ،، یو قسم جمع ده چې عموماً د شمېر اسمونو سره راځي ـ د ,, وطن ،، بدل شکل چې د مغیرهٔ تورو سره راځي.

**له ـــ ورکېدل** :- بې وطنه کېدل ، بل وطن ته تلل ، مسافر کېدل.

**له ـــ سترګې پناه کول** :- (و ـــ له وطنه ورکېدل ).

**وطني** :-(و + ط + ني )(عف ، صف ) وطن سره تعلق لرونکے ، وطـن تـه منسوب ـ د وطن ، د خپل ملک ، هم وطن ، وطن وال.

**ـــ تعصب** :- (ـــ ت + ع + ص + ب )(عپ ، اس ، مذ ) د وطن طرفداري.

**ـــ منسوجات** :- (ـــ م + ن + سو + جا+ت)(عف تر ، اس ، ج ) په وطن کښې جوړ شوي ټوکي ، ملکي کپړې.

**ـــ خبرونـه** :- (ـــ خ + ب + رو + نَ ) د خپـل وطـن خبرونـه ، د خپـل ملـک خبرونه.

**وطنیت** :- (و + ط + ني + ي + ت )(ع ، اس ، مذ ) وطن سره تعلق لرنـه ، وطـن سره مینه لرنه.

**وطـــواط** :-(و+ط+وا + ط )(ع ، اس ، مـــذ ) ښـاپیرک ، خفـاس ،ابابیـــل ، طوطاکرکے.

**وطي** :- (و + طي )(ع ، اس ) ښځې سره مجامعت کول ، ښځې سره کوروالے کول ـ لتاړونه ، د پښو لاندې دل کونه.

**ـــ کول** :- ښځې سره صحبت کول ، مجامعت کول.

**وظائف** :- (و + ظا +ئي + ف )(ع ، اس ، ج ) د ,, وظیفه ،، جمع ده ـ وظیفې.

**داعضاؤ ـــ** :- (د ، ا + ع +ضا + ؤ ـــ )(عـپ تـر ، اس ، ج ) د بـدن د اندامونو خپل خپل کار.

**وظیفه** :- (و + ظي + فَ )(ع ، اس ، مو، ج ـــ فې/وظائف ) د ورځې،میاشتې یا د کال خرڅ (چې مستحق لـه ورکولے شي)د ډوډۍ ټوکره چې د خیـرات په طور ورکړے شي ـ ذمه داري ، ډیوټي ، کار ، هغـه دعـا وغېـره چې د ثواب دپاره لوستلے شي.

**ـــ اشغالول** :- خپـل فـرض ګرځـول ، خپله ذمـه داري ګرځـول ـ د ثـواب دپـاره کومه دعا لوستل.

**ـــ خوارهٔ** :- (ـــ خ + وا + ر ) د ,, وظیفه خور ،، جمع ده.

**ـــ خور** :- (ـــ خو + ر )(عپ تر ،اس،صف ) وظیفه خوړونکے ، هغـه سړے یا

طالب علم چې د خرڅ خوراک وغېره دپاره ورلـه خاص رقم ملاوېږي.

هغه سړے چې د وظیفې د ډوډیو ټکرې خوري، چڼے، خیرات خور.

ـــــ **خوره** :- (ـــخ + و + ر)(عـپ تر، اس صف، مـو، جـــرې) د ،، وظیفه خور،، تانیث دے.

ـــــ **دار** :- (ـــدا + ر)(عف تر، اس، صف، جـــان) وظیفـه لـرونکے، وظیفه خواران.

ـــــ **راوړۍ** :- (جمله) د جماعت د چنو دپاره د ډوډۍ ټکرې غونښتلو په وخت پـه کوڅـو کښـې دا اواز کولے شـي. مجـازاً: وظیفه غوښتونکے. د خېرات ټکرې خوړونکے.

ـــــ **شناس** :- (ـــش + نا + س)(عف تر، صف، مو ـــه) فرض شناس.

ـــــ **شناسي** :- (ـــش + نا + سي)(عـف، تر، اس، مـو) فـرض شناسـي، خپله ډیوټي پېژندنه.

ـــــ **غوښتل** :- په محلت کښې د جماعت د چنو (یا مـلا) دپاره د ډوډۍ ټکرې غوښتل. مجازاً: خېر غوښتل یا د خېر په ټکرو لوئیدل.

ـــــ **کول** :- خاص قسم دعا د ثواب دپاره لوستل، تسبیح کول.

ـــــ **گټل** :- په امتحان کښې د یو طالب علم اول راتلل او د لیاقت د وظیفې حقدار گرځېدل.

ـــــ **لرونکے** :- (ـــل + رو + ن + کے)(عـپ تر، اس، فـا، جـــکـي) وظیفـه اخیستونکے، وظیفه خور.

**عسکري** ـــــ :- (ع + س + ک + ري ـــ).

**فوجي** ـــــ :- (فو + جي ـــ)(عف/ عپ تر، اس مـو، جـــفي) د طالب علمانو دپاره هغه مالي امداد کوم چې د فوځیانو زامنو لـه ورکولے شي.

**لیاقتي** ـــــ :- (ل + یا + ق + تي ـــ)(عـپ تر، اس، مو، جـــفي) هغـه مـالي امداد کوم چې یو طالب علم لـه د خپل لیاقت یعني په مقابله کښې د اول راتللو په وجه ورکولے شي.

دـــــ **په ډول / طریقه** :- (د ـــپ + ډو + ل) د خپل فرض پـه طـور، د خپلـې ډیوټۍ په ډول.

**وظیفۀ** :- (و + ظي + ف + تَ + ن)(ع، تف) د وظیفې په طور، د خپلې ذمـه وارۍ د کار په طور، د ډیوټۍ په طور.

**وظیفوي** :- (و + ظي + ف + وي)(عف، تر، تف) وظیفې سره تعلق لـرونکے، وظیفې ته منسوب، د کار فرض، ډیوټي وغېره سره تعلق لرونکے.

**وظیفي** :- (و + ظي + فې)(د ،،وظیفه،، جمع ده. د ،،وظیفه،، بـدل شـکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

دـــــ **اجراء** :- (د ـــا + ج + را)(عـپ تر، اس، مـو) د ذمـه وارۍ پـوره کونـه، د خپل کار سرته رسونه.

**وعا** :- (و + عا)(ع، اس، مو، جـــاوعیه) لوښے، ظرف.

**وعده** :- (و + (ع) + د)(ع، اس، مو، جـــدې) قول، اقرار، لوظ.

ـــــ **اخیستل / اغیستل** :- د چا نه د کوم کار د کولو په حقله قول لوظ اخیستل.

ـــــ **پوره کول** :-

ـــــ **وفا کول** :- وعده یعني قول اقرار پوره کول. د وعدې مطابق کار کول.

ـــــ **تر سره کول** :- (و ـــ وعده پوره کول).

ـــــ **تړل** :- (و ـــ وعده کول).

ـــــ **خلاف** :- (ـــخ + لا + ف)(عف، تر، صف، مذ، مو ـــه) د وعـدې نـه خلاف عمل کوونکے، وعده نۀ پوره کوونکے.

ـــــ **خلافي کول** :- وعده نۀ پـوره کـول، لـوظ قـول نۀ تر سره کـول، د لـوظ قـول خلاف عمل کول.

ـــــ **درستول** :- وعده پوره کول، وعده وفا کول.

ـــــ **شکن** :- (ـــش + ک + ن)(عف تر، صف، مذ، مو ـــه) وعـده مـاتونکے، لوظ ماتونکے، بې لوظه، بې ژبې.

ـــــ **شکني** :- (ـــش + ک + ني)(عف، تر، اس، مو) وعـده ماتونـه، لوظ قول ماتونه، بې ژبتوب.

ـــــ **کول** :- لوظ کول، اقرار کول، قول ورکول.

ـــــ **ماتول** :- لوظ ماتول، د قول اقرار نه اوړېدل.

ـــــ **وفا** :- (ـــو + فا)(عف، تر، صف) وعده پوره کوونکے، پـه لـوظ قـول ټینگ پاتې کېدونکے، د لوظ پوره.

**زباني** ـــــ :- (ز + با + ني ـــ)(عـف تر، اس مـو، جـــدې) هغه وعده چې تشه په ژبه یا خولۀ وکړے شي (د تحریري وعدې په مقابله کښې) ژبـه، لوظ.

**په** ـــــ **درېدل** : په وعده یا قول اقرار ټینگ پاتې کېدل.

**وعـدې** :- (و (ع) دې)(د ،،وعـدې،، جمـع ده. د ،،وعـده،، بـدل شـکل چـې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

دـــــ **پوخ** :- (د ـــپو + خ)(عـپ، تر، صـف) هغـه سړے چـې پـه خپلـه وعـده ټینگ وي. خپله وعده ضرور پوره کوونکے.

دـــــ **پخه** :- (د ـــپ + خَ)(پ تر، صف، مو، جـــخې) د ،،وعدې پـوخ،، تانیث دے.

دـــــ **کچه** :- (د ـــک + چَ)(عپ، تر، صف) هغـه سړے چـې پـه خپلـه وعـده ټینگ نۀ پاتې کېږي. وعده نۀ پوره کوونکے.

دـــــ **نۀ گرځېدل** :- (و ـــ وعده ماتول).

**وعظ** :- (و + ع + ظ)(ع، اس، مذ، جـــونه) نصیحت، پند، د ښۀ ؤ وینا.

ـــــ **کول** :- د نصیحت تقریر کول، نصیحت کول، مذهبي تقریر کول.

**وعلیکم السلام** :- (و + ع/(ع) + لې + ک + مُ + س + سَ + لا + م)(ع، جمله) او پـه تاسو دې (هم) سلام وي. د اسلامي طریقې سلام (السلام علیکم) جواب دے.

**وعید** :- (و + عي + د)(ع، اس، مذ، جـــونه) د سزا ورکولو وعده یا ویره ورکونه. (د ،،وعده،، پـه مقابله کښې چې د ثواب او جزا ورکولـو پـه معنا کښې راځي).

**وغاء** :- (و + غا)(ع، اس) جنگ، جگړه.

**وغن** :- (و + غ + ن)(اس، مذ) د بني ادم د گېډې چینجے، وغه.

**وغه** :- (و + غَ)(اس، مو، جـــغې) یو خاص قسم اوږد چینجے چې پـه گېـډه کښې پیدا کېږي.

**وغېره** :- (و + غې + رَ)(ع تر، تف) د هغۀ نـه عـلاوه نـور. پـه بیـان کښـې چـې یـو نـوم واخستے شـي او بـل نـوم ونۀ وئیلے شـي نـو ددغـې نـوم پـه ځـاے ،،وغېره،، ووئیلے یا ولیکلے شي. (په عربۍ کښې صرف د یو پرېښود او اردو وغېره) ژبـو کښـې د یـو نـه زیـاتو نومونو دپاره راځي. ځینې وخت ،،وغېره وغېره،، هم استعمالېږي).

**وغېرها** :- (و + غې + ر + ها)(ع، تر، تف) د هغو نه عـلاوه نـور. (پښتو کښې عموماً ددې په ځاے هم ،،وغېره،، استعمالېږي. (و ـــ نوټ د ،،وغېره،، تر لاندې).

**وغېره هم** :- (و + غې + ر + هـ + م)(ع، تر، تف) د هغوي نه علاوه نور. (پښتو کښې عموماً ددې په ځاے هم ،،وغېره،، استعمالېږي. (و ـــ نوټ د ،،وغېره،، تر لاندې).

ـــــ **وغېره** :- (ـــو + غې + ر)(ع، تر، تف) د هغـه نـه نور او نور. د گڼو څیزونو دپاره استعمالېږي. (په عربۍ کښې ئې استعمال نشته).

**وغبرهما** :- (و + غبِ + ر + هُ + ما) (ع ، تر ، تف) د هغو دواړو نه علاوه نور ـ (په پښتو کښې کم کوز استعمالیږي ـ (و ـــ نوټ د ,, وغبره ،، تر لاندې) ـ

**وغه** :- (و + غَ) (و ـــ وغن) ـ

**وفا** :- (و + فا) (ع ، اس ، مو ، ج ـــ ګانې) پوره کونه ، ملګرتیا ،دوستي ، لوظ ، قول وغبره سرته رسونه ـ

پسـران اخـوان دا حـال لـري يـار کـوم دے
د وفـا اميـد کوتـاه کـړه لـه جهانـه (سعيد)

**وفا**:- (و + فا) د دوستۍ او د وعدې پالنه ، پښتو ـ

**ـــ پیشه** :- (ـــ پې + شَ) (عف ، تر ، صف) هغه کس چې پیشه یا عادت ئې د وفاداري وي ـ هغه سړے چې هر چا سره د دوستۍ وغبره حق پوره کوي ـ

**ـــ دار** :- (ـــ دا + ر) (عف ، تر ، صف ، اس، ج ـــ ان) هغه سړے چې د دوستۍ ، نوکرۍ وغبره حق ادا کولو کښې ټینګ وي ـ

**ـــ داري** :- (ـــ دا + ري) (عف ، تر ، اس ، مو) د دوستۍ ، نوکرۍ وغبره د تعلق حق ادا کونه ـ

**ـــ دارانه** :- (ـــ دا + را + نَ) (پ تر ، تف) د وفادار سړي په انداز ـ

**ـــ داري کول** :- د دوستۍ یا د نوکرۍ وغبره حق پوره کول ـ

**ـــ شعار** :- (ـــ ش + عا + ر) (و ـــ وفا پیشه) ـ

**ـــ کول** :- پوره کول ، تر سره کول ـ لکه : وعده وفا کول ـ (خج په ,,ول ،، باندې دے) ـ

**ـــ کول** :- وفاداري کول ، دوستي ، تعلق وغبره تر سره کول ـ د دوستۍ حق ادا کول ـ (خج په ,,وفا ،، باندې دے) ـ

**ـــ کېش** :- (ـــ کې + ش) (و ـــ وفا پیشه) ـ

**ـــ والا** :- (ـــ وا + لَ) (و ـــ وفادار) ـ

**بې ـــ** :- (بې +و + فا + ئي) د وفادارۍ خلاف عمل ، وفا نۀ کونه ـ

**بې ـــ کول** :- وفا نۀ کول ، په دوستۍ نوکرۍ وغبره کښې د دوستۍ وغبره حق نۀ پوره کول ، غداري کول ـ

**دعمر ـــ کول** :- عمر پاتې کېدل ، عمر ملاوېدل ـ لکه : که عمر مې وفا وکړه نو دا کار به سرته رسوم ـ یا عمر ئې وفا ونۀ کړه یعني مړ شۀ ـ

**وفات** :- (و + فا + ت) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / وفیات) فوت کېدنه ، مړ کېدنه ، مرګ ، مړینه ـ (د ژوند پوره کېدنه) ـ

**ـــ شريف** :- (ـــ ش + ري + ف) (ف تر ، اس ، مذ) د بزرګانو د مرګ د ذکر کولو په موقع احتراماً وئیلے شي ـ مرګ ، مړ کېدنه ، مړینه ـ

**ـــ کېدل** :- مړ کېدل ، حق رسېدل ـ

**د ـــ ورځ** :- (د ـــ و +ر (د) ز) د مړ کېدو ورځ یا تاریخ ـ

**وفاق** :- (و + فا + ق) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) وفق لرنه ، اتحاد ، اتفاق ، موافقت سازګاري ـ د مختلفو ریاستونو یا د صوبو په ګډه سره حکومت جوړونه ـ

**وفاقي** :- (و + فا + قي) (عف ، تر ، صف) وفاق سره تعلق لرونکے ، وفاق ته منسوب ـ

**وفاقيت** :- (و + فا + قي + ي + ت) ـ

**وفاقيه** :- (ـــ يَ) وفاق سره تعلق لرنه ـ د وفاق د طرز حکومت ـ

**وفائي** :- (و + فا + ئي) (عف تر ، اس ، مو) وفا کونه ـ عموماً د نفي توري سره ,,بې وفائي ،، په شکل کښې راځي ـ

**وفد** :- (و + ف + د) (ع، اس ، مذ ، ج ـــ ونه / وفود) جرګه ، هغه ټولې چې د چا نمائندګي کوي ـ هغه نمائنده جماعت چې د چا دپاره د کومې مطالبې په غرض چا ته لېږلے شي ـ

**وفد** :- (و + ف + د) (ع ، اس ، مذ) راتلنه ، وارد کېدنه ـ (عام استعمال ئې نشته)

**ـــ لېږل** :- جرګه لېږل ، خپل نمائندګان لېږل ـ

**وفرت** :- (و + ف + ر + ت) (ع ،اس ، مذ) ډېر والے ، ګڼ والے ، زیاتوالے ، کثرت

**ـــ کول** : ډېرېدل ، زیاتېدل ، ګڼېدل ، کثیر کېدل ـ

**وفر** :- (و + ف + ر) (ع ، اس) زیاتوالے ، ډېر والے ـ

**وفق** :- (و + ف + ق) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) موافقت ، مطابقت ، اتفاق ، سازګاري ، (رياضي) هغه عدد چې نور عددونه پوره پوره تقسیموي ـ لکه د ۱۲ او ۱۲ وفق ۴ دے ـ

**وفود** :- (و + فو + د) (ع ، اس ، ج) د ,,وفد ،، جمع ده ـ وفدونه جرګې ـ

**وفور** :- (و فو+ ر) (ع،اس،مذ) زیاتوالے ، ډېر ، کثرت ، وفرت ـ

**وقار** :- (و + قا +ر) (ع،اس،مذ ،ج ـــ ونه) درونډ والے،درنښت ـ سنجیدګي ، متانت ،قدرمنزلت ـ د نارینه ؤ او د زنانه ؤ په نومونو کښې راځي ـ

**ـــ لرل** :- درونډ والے لرل ، درنښت لرل ـ متانت ، سنجیدګي لرل ـ قدر منزلت لرل ـ

**ـــ والا** :- (ـــ وا + لا) (عپ ،تر ،صف) هغه چې وقار لري ، درونډ ، عزتمند ـ

**په ـ سره** :- (پ ـــ س + ر) (عپ ، تر ، تف) په درونډوالي سره ، په درنښت سره ـ په سنجیدګۍ سره ، په متانت سره ـ

**وقائع** :-(و + قا + ئي + ع) (ع ، اس ،ج)د ,,وقیعه ،، جمع ده ـ پېښېدونکي واقعات ، حالات ، د جنګ خبرونه ، حادثې ، پېښې ، وارداتونه ـ

**ـــ نګار** :- (ـــ ن + ګا + ر) ـ

**ـــ نویس** :- (ـــ ن + وي + س) (عف تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د جنګونو واقعات او د پېښو لیکونکے ـ په نړۍ کښې د پېښېدونکو واقعاتو لیکونکے ـ نامه نګار ،اخبار نویس ـ

**ـــ نګاري** :- (ـــ ن + ګا + ري) ـ

**ـــ نویسي** :- (ـــ ن + وي + سي) (عف ، تر ، اس ، مو) د جنګ د پېښو لیکونکے ، د جنګونو د واقعاتو لیکونکے ـ په نړۍ کښې د پېښېدونکو واقعاتو ، حادثاتو وغبره خبرونه ورکولو ، اخبار نویسي ـ

**وقت** :- (و + ق + ت) (ع ، اس ، ظر ، ج ـــ ونه / اوقات) وخت ، زمانه ، ساعت ، ګړۍ ، شپېه ، ورځ میاشت ،کال ، د وخت دا ټولې ټکړې په دې کښې شاملې دي ـ ژوند ، عمر ـ مرګ ، د مرګې ګړۍ ـ تکلیف ، مصیبت ، موسم ـ فرصت ، مهلت ، (د ,,وقت ،، سره تړلې محاورې د ,,وخت ،، تر لاندې وګورئ) ـ

**وقتاً** :- (و + ق + ت + ن) (ع ، تف) وقتي طور سره ، عارضي طور سره ـ

**ـــ فوقتاً** :- (ـــ ف + و + ق + ت + ن) (ع تر ، تف) وخت په وخت ، کله کله ، ځینې ځینې وخت ، په مناسب وختونو کښې ـ

**وقتي** :- (و + ق + تي) (عف،تر،صف) وخت سره تعلق لرونکے ، وقت سره مناسب ـ عارضي ـ (ددې لفظ معنا ,,وختي ،، ونۀ لیکلې شوه ـ چې دې لفظ په پښتو کښې د راتلو نه پس خپلې معنې بدلې کړې دي ـــ بخاري)

**ـــ طور سره** :- (ـــ طو + ر + س + ر) عارضي طور سره ، د لږ شان وخت دپاره ـ

**همه ـــ** :- (هَ + مَ ـــ) (ف تر ، صف) د ټول وخت دپاره ، ټول وخت سره تعلق لرونکے ـ لکه :همه وقتي ملازمت ـ

**وقس علی هٰذا** :- (و + ق + س + غ + لا + ها + ذا)(ع،جمله) په دې باندې نور قیاس هم وکړه. په داسې موقع وئیلې شي چې د کومې خبرې یو مثال نیم بیان کړې شي او نور مثالونه د اوریدونکي یا لوستونکي د قیاس دپاره پرېښودے شي.

**وقعت** :- (و + ق + ع + ت)(ع،اس،مذ،ج ــــ ونه) عزت، درونوالے، ابرو، وقار، قدر منزلت.

**ــــ لرل** :- اهمیت لرل، درنښت لرل، عزت، ابرو لرل، د توجه وړتیا لرل.

**ــــ نهٔ ورکول** :- اهمیت نهٔ ورکول، اهم نهٔ ګڼل، توجه نهٔ ورکول.

**وقف** :- (و + ق + ف)(ع، اس، مذ، ج ــــ ونه /اوقات) ودرېدنه، ولاړه، توقف، هغه جائداد کوم چې د خدا ے په نامه ورکړے شي - چې د اولس د ښېګړې دپاره په کار راوستے شي. د ساکن توري (حرف) نه وروستو د داسې توري (حرف) راتلهٔ چې هېڅ حرکت نهٔ لري. په کوم کار کښې ډېر مصروف. هغه دمه کومه چې د قرآن پاک د لوستلو په وخت په مقرره ځایونو کولے شي.

**ــــ کول** :- د جائداد وغېره د اولس د ښېګړې دپاره د خدا ے په نامه ورکول.

**ــــ کول، ځان** :- خپل ژوند د کوم کار یا د مقصد دپاره خاص کول، خپل ټول وخت اوقوت د کوم کار یا مقصد له د ورکولو عهد کول.

**ــــ کېدل** :- د اولس دښېګړې دپاره کوم جائداد وغېره د خدا ے په نامه ورکړے کېدل.

**ــــ مال. زمکه** :- هغه مال یا زمکه وغېره چې د خدا ے په نامه د ښېګړې د کارونو دپاره ورکړے شوې. د داسې وقف مال هېڅوک مالک نهٔ وي او فقط د هغې کار دپاره استعمالولے شي د کوم دپاره چې اصل مالک وقف کړې وي.

**ــــ نامه** :- (ــــ نا + م)(عف، تر، اس، مو، ج ــــ مې) هغه کاغذ یا دستاویز چې په کښې دکوم جائداد وغېره د وقف کولو اقرار لیکلے شوے وي.

**د ــــ علامت** :- (د ــــ ع + لا + م + ت)(عپ، تر، اس، مذ) هغه خاص علامت (وقف) چې په قرآن کښې په خاصو ځایونو لګېدلے وي. لوستونکے هلته دمه کولے شي.

**وقفه** :- (و + ق + فَ)(ع، اس، مو، ج ــــ فې) د مقرره وخت دپاره د کوم کار اټالونه. د روان کار د ودرولو او څهٔ وخت پس بیا د جاري کولو تر مینځه وخت. د قرآن پاک د تلاوت په وخت په مقرره ځایونو دمه کونه.

**ــــ ورکول** :- د دمې وخت ورکول، یو کار د مقرره وخت دپاره بندول، د وقفې علامت لیکل.

**په ــــ وقفه** :- (پ ــــ و + ق + فَ)(عپ تر، اس، ظر) لږ لږ ساعت پس، شېبه په شېبه، د لږې لږې دمې نه پس.

**وقفول** :- (و + ق + ف + ؤ + ل)(و ــــ وقف کول).

**وقفېدل** :- (و + ق + فې + د + ل)(و ــــ وقف کېدل).

**وقفي** :-(و + ق + في)(عف، تر، صف) وقف سره تعلق لرونکے، وقف ته منسوب.

**وقوع** :- (و + قو + ع)(ع، اس،مذ) واقع کېدنه، پېښېدنه.

**په ــــ کښې راتلل** :- واقع کېدل، پېښېدل، څرګندېدل.

**کثیرال ــــ** :- (ک + ثي + رُ + ل ــــ)(ع، تر، صف) په ډېر شمېر کښې واقع کېدونکے، اکثره پېښېدونکې.

**نادرال ــــ** :- (نا + د + رُ + ل ــــ)(ع، اس، صف) کم کم واقع کېدونکے، داسې کار چې عام طور سره نه واقع کېږي.

**وقوعه** :- (و + قو + ع)(ع، اس، مو، ج ــــ عې/ ات) واقعه، پېښه، حادثه، واردات.

**ــــ کول** :- حادثه کول، واردات کول، جنګ جګړه یا مرګ ژوبله کول.

**ــــ کېدل** :- حادثه پېښېدل، واقعه پېښېدل، واردات کېدل، جنګ جګړه، ډاکه یا د قتل وغېره لویه حادثه کېدل.

**جا ے ــــ** :- (جا + ے ــــ)(و ــــ د وقوعې ځا ے).

**وقوعي** :- (و + قو + عي) د ,,وقوعه،، جمع ده. د ,,وقوعه،، بدل شکل د ے چې د مغیره ؤ تورو سره استعمالېږي.

**د ــــ ځا ے** :- (د ــــ (د) زا + ے)(عپ، تر، اس، ظر) هغه ځا ے چېرته چې کومه حادثه، جنګ جګړې، قتل شوې وي. د حادثې موقع، د وارادات موقع.

**وقوف** :(و + قو + ف)(ع، اس، مذ، ج ــــ ونه) واقفیت حاصلونه، علم حاصلونه، واقفیت، اګاهي، علم، شعبه، تمیز، سلیقه. اودرېدنه ،دمه.

**ــــ حاصلول** :- واقفیت حاصلول، علم حاصلول، اګاهي حاصلول.

**ــــ دار** :- (ــــ دا + ر)(عف، تر، صف، اس ،ج ــــ ان) وقوف لرونکے، علم لرونکے، اګاهي لرونکے.

هـوښیار مه ګڼه هوښیار ددې دنیا

بې وقوف د ے وقوف دار ددې دنیا (رحمان بابا)

**وقیع** :- (و + قي + ع)(ع، صف، مذ، مو ــــ ه) وقعت لرونکے، درنښت لرونکے، وزن لرونکے. د عزت خاوند، عزتمند، تېره توره.

**وقیعه** :- (و + قي + عَ)(ع، اس، مو، ج ــــ عې / وقائع) عېب ګوئي، پس غېبت کونه، غېبت، بدګوئي، غمازي.

**وک** :- (و + ک)(اس،مذ) د ,,واک،، لنډېز شکل د ے. اختیار، قابو، طاقت.

**ــــ اختیار** :- (ــــ ا + خ + ت + یا + ر)(فپ تر،اس، مذ) د دواړو لفظونو یو شان معنې دي. بل لفظ د تاکید کار ورکوي. واک اختیار، پوره اختیار.

**وکا** :- (و + کا)(فعل) د ,,وکړي،، بدل شکل، وکاندې. د شکي یا تمنائي ماضي فعل (واحد غائب).

**وکا** :- (و + کا)(فعل) د ,,وکړه،، لنډېز شکل د ے. د ,,کول،، مصدر نه د امر فعل د ے. (عموماً ,,وکه،، لیکلے شي).

**وکا** :- (و + کا)(فعل) د ,,وکړي،، بدل شکل.

**وکاږل** :- (و + کا + ګ/ژ + ل)(مص) وېستل، اباسل. باهر ته کول، بېرون کول.

**ځان ــــ چا څخه** :- ځان ډډې ته کول. ځان ساتل، ځان بچ کول. لکه: اوس چې په ما سخته راغله نو تهٔ ځان راڅخه وکاږې.

**وکالتاً** :- (و + کا + ل + ت + ن)(ع، تف) د وکیل په حېث، د وکیل په وطور. د وکیل په ذریعه، د وکیل په وسیله.

**وکلاء** :- (و + ک + لا)(ع، اس، ج)د ,,وکیل،، جمع ده. وکیلان.

**وکالت** :- (و + کا + ل + ت)(ع، اس، مذ، ج ــــ ونه) د وکیل پېشه، د وکیل کار د بل دپاره د وکیل په طور کار کونه ،قایم مقامي، نیابت.

**ــــ التجاري** :- (ــــ (تُ+ت) +تُ + جا + ري)(و ــــ تجارتي وکالت).

**ــــ تام لرل** :- (ــــ (ت) + تا + م + ل + ر +ل) د وکالت پوره پوره اختیار لرل.

**ــــ کول** :- د وکیل پېشه اختیارول، د بل دپاره د وکیل په طور کار کول نیابت کول، د بل په ځا ے خبرې کول یا د بل عندیه څرګندول، نمائندګي کول

**ــــ نامه** :- (ــــ نا + مَ)(عف تر، اس، مو، ج ــــ مې) هغه دستاویز چې په کښې د چا د وکیل کولو اقرار شوے وي. د وکیل د مقرورلو کاغذ.

**تجارتي ـــــ** :- (ت + جا + ر + تي ـــــ) (عپ ، اس ، مذ) د تجارتي معاملاتو په حقله د يو حکومت د طرفه په بل ملک کښې نمائندګي.

**وکاوۀ** :- (و + کا + و) (فعل) د ,, کول ،، مصدر نه د ماضي فعل وکړ.

**وکاوۀ** :- (و + کا + و) (فعل) د ,, وکړ ،، بدل شکل دے. وکړ، وکړلو، وکۀ.

**وکاندے** :- (و+کا+ن + دے) (فعل) د ,, وکړي ،، زوړ شکل دے.

**وکاني** :- (و + کا + نِي) (فعل) د ,, وکړئ ،، زوړ شکل دے.

**وکټ** :- (و + ک + ټ) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه درې لرګي چې د کرکټ په لوبه کښې په زمکه ودرولے شي او لوبغاړے ئې په غونډسکه ولي او بل لوبغاړے دا لرګي د غونډسکې نه بچ کوي. هغه ميدان چې دا درې لرګي (وکټونه) په کښې ودرولے شي.

**وکټوريه** :- (و + ک +ټو+ري+يَ) (انګ ، اس ، مو ، ج ـــ ګانې) يو قسم د څلور پايو ګاډے / بګۍ چې عموماً شته منو او معتبرو خلقو په کښې لنډ سفرونه کول. اوس ورک شوي دي. کراچۍ وغيره لويو ښهرونو کښې شته. (اس ، مع) د انګلستان يوه ډېره مشهوره ملکه. چې ګډ هندوستان ئې هم باچاهي کړې ده.

**وکټوريه کراس** :- (و + ک + ټو + ري + يَ + ک + را + س) (انګ ، تر اس ، مذ ، ج ـــ ونه) په جنګ کښې د ميړانې ښودلو يو ډېره لويه تمغه ده چې د پيرنګيانو په باداشاهۍ کښې ورکولے شي. دا د هغوي د يوې ملکې چې وکټوريه نوميده په نامه وه. ځينو پښتنو هم دا تمغه ګټلې ده.

**ـــــ ګټل** :- په جنګ کښې بې کچه لويه کارنامه سرته په رسولو ددغه نامې تمغه ګټل ډېره لويه توره ، ميړانه ښودل.

**وکر** :- (و + ک + ر) (اس ، مذ).

**وکري** :- (و + ک + ري) (هـ ، اس ، مو) د دوکان د څيزونو د خرڅېدلو يوميه ګټه. د خرڅون امدن.

**ـــــ کول** :- د دوکان څيزونه خرڅول ، د څيزونو په خرڅولو ګټه کول. څهره ، مخ ، قيافه.

**وکړ** :- (و + ک + ړ) (فعل) د ,, کړل ،، مصدر څخه د ماضي فعل وکړو ، اوکړو ، اوکړلو.

**وکړاے** :- (و + ک + ړا + ے).

**وکړم** :- (و + ک + ړ + م) (فعل) د ,, کړل ،، مصدر نه د ماضي تمنائي يا شرطي (واحد متکلم) فعل ، که زۀ وکړم.

**وکړو** :-(و + ک+ ړو) (فعل) د ,, کړل ،، مصدر نه د شرطي يا د تمنائي ماضي (جمع متکلم) فعل. که موږ وکړو.

**وکړو** :-(و + ک + ړو) (فعل) د کړل مصدر څخه د شرطيه يا تمنائي ماضي (جمع متکلم) فعل.

**وکړو** :- (و + ک + ړو) (فعل) د ,, کړل ،، مصدر څخه د ماضي فعل (اصلاً ,, وکړ ،، دے. واو پرې تېرے زياته کړې شوه).

**وکړلو** :- (و + ک + ړ + لو) (و ـــ وکړو).

**وکړه** :- (و + ک + ړَ) (و ـــــ وکړ).

**وکړه** :-(و + ک + ړَ) (فعل) د ,, کړل ،، مصدر نه د امر (واحد) فعل.

**وکړه** :-(و + ک + ړ) (فعل) د ,, کړل ،، مصدر څخه د ماضي فعل په معنٰى. ښځه ئې وادۀ کړه. يعني هغه ئې په نکاح راوسته. (امر) ښځه په نکاح کښې راوله.

**وکړي** :- (و + ک + ړي) (فعل) د ,, کړل ،، مصدر نه د تمنائي ماضي فعل (د غايب صيغه) که هغه وکړي.

**وکړئ** :- (و + ک + ړ + ئ) (فعل) د کړل مصدر څخه. د ماضي (جمع حاضر) تمنائي يا شرطي فعل. د جمع امر. که تاسو وکړئ.

**وکړے** :- (و + ک + ړے) (فعل) د ,, کړل ،، مصدر نه د ماضي تمنائي يا شرطي فعل (واحد حاضر) که تۀ وکړے.

**وکړے** :- (و + ک + ړے) (فعل) د ,, وکړل ،، مصدر څخه نيمګړے فعل ، چې نورو الفاظو سره پوره کېږي او د تمنائي ماضي کار ورکوي. لکه : که ما دا وکړاے / وکړے شوے نو....

**وکښ** :- (و + ک + خ/ش) (فعل) د ,, کښل ،، مصدر نه د ماضي فعل وباسۀ ، وښکۀ.

**وکښل** :- (و + ک + خ/ش + ل) (مص) وخکل ، وباسل ، بهرون کول (دا لفظ يا خو د ,,کشل ،، ليکل پکار دي يا وخکل ځکه چې ,, وکخکل ،، هم ځوک نۀ وائي او ,,وشکل ،، هم. اصلاً کشل دے چې په فارسي کښې کشيدن دے.

**وکښو** :- (و + ک (خو) / شو) (فعل) د ,, کښل ،، مصدر نه د ماضي فعل ، وباسلو ، ووېسته ، وخکۀ ، وخکلو.

**وکلئ** :-(و + ک + ل + ئ) (هـ ، اس ، مو) لنګرۍ ، چې په کښې مصالې وغيره ټکولے شي. يا د ګانې لويه کاڼيزه لنګرۍ چې په کښې شړشم وغيره دلولے شي. په افغانستان کښې د لرګينې لنګرۍ په معنې کښې استعمالېږي. چې په سرحد کښې ورته چټو وائي. (هـ ـ اوکهلی).

**وکم** :- (و + ک + م) (فعل) د ,, وکړم ،، لنډيز شکل دے.

**وکوړ** :-(و + کو + ړ) (اس ، جم) اکوړ ، غوز.

**وکولو** :- (و + ک + ؤ + لو) (فعل) د ,, کول ،، مصدر نه د ماضي فعل. (و ـــ وکړ)

**وکوله** :- (و + ک + و + لَ) د ,, وکولو ،، تانيث دے. وکړه.

**وکوو** :- (و + ک + وو) (فعل) د ,, کول ،، مصدر نه د ماضي تمنائي يا د شکې (جمع متکلم) فعل دے. وکړو.

**وکه** :- (و + کَ) (فعل) د ,, کول ،، مصدر نه د امر فعل. وکړه ، اوکه.

**وکه** :- (و + کَ) (اس ، مو) خواهش ، ارزو ، شوق ، ډېره زياته اشتها.

**ـــــ کول** :- خواهش کول ، ارزو کول.

**ـــــ لرل** :- خواهش لرل ، ارزو لرل ، اشتياق لرل (ډېره زياته) اشتها لرل.

**وکه** :- (و + ک) (فعل) د ,, کول ،، مصدر څخه د ماضي د فعل ,, وکړ ،، لنډيز شکل.

**وکه** :- (و + کَ) د ,, وک ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**وکئ** :- (و + ک + ئ) (فعل) د ,, کول ،، مصدر نه د جمع امر فعل ، وکړئ.

**وکيل** :- (و + کي + ل) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ان / وکلاء) وکالت کوونکے ، هغه سړے چې د بل دپاره کار کوي. مختار ، قائم مقام. د قانون سند يافته ماهر ، چې په عدالتونو کښې د خلقو دپاره د مقدمو پيروي کوي. (طنزاً) هوښيار ، بحث کوونکے.

**ـــ التجار** :- (ـــ (لُ+ت) + ت + ج +جا + ر) (و ـــ تجارتي وکيل).

**ـــــ کول** :- خپل مختار ګرځول ، د خپل کار په حقله اختيار ورکول.

**ـــــ نيول** :- د مقدمې د پيروئ دپاره قانوني وکيل خپل مختار ګرځول.

**ددعوي ـــــ** :- (د ، د + ع + وي ـــــ) (عپ تر ، اس ، مذ) د دعوٰى کوونکي د طرفه تور شوے وکيل.

**دمدافعي ـــــ** :- (د ، م + دا + ف +عي ـــ) (عپ ، تر ، اس ، مذ) په مقدمه کښې د مدافعت کوونکي وکيل. د مدعا عليه وکيل.

**سرکاري ـــ** :- (س +ر +کا+ري ـــ) (عپ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) هغه وکيل چې د حکوت د طرفه د مقدمې پيروي. وکيل سرکار.

**وکيله** :- (و + کي + لَ) (اس ، مو ، ج ـــ لې) د ,, وکيل ،، تانيث دے.

**وکښنه** :- (و + کښ + نَ) (فعل) د کښنل (کنستل) مصدر څخه د امر فعل ،

وکنه.

**وکیلي** :- (و + کي + لي)(و ـــ وکالت).

**وکے** :- (وُ/ؤ + کے)(اس ، مذ ، ج ـــ کي) د ,,هوکے،، لنډیز شکل دے . وړه شان هو.هو کونه ، او کونه ، په اثبات کښې جواب.د منلو جواب.

**ـــ کول** :- هوکے کول ، او کول ، مثبت جواب ورکول.

**ـــ وکے** :- (ـــ وُ + کے)(لاحقه) د پښتو لاحقه ده.په نورو الفاظو څخه ورستو راوستے شي او د تصغیر او وړوکوالي معنې شیندي. لکه وړوکے.

**ـــ وکے** :- (ـــ + کے)(لاحقه) د پښتو لاحقه ده.د تصغیر وړوکوالي معنې شیندي. لکه : غټوکے.

**وکېښ** :- (و + کې + خ/ش)(فعل) د ,,کښل،، مصدر څخه د ماضي فعل ، وخکڅ ، وباسڅ ، ووېست.

**وګ** :- (وِ + ګ)(انګ ،مذ ،ج ـــ ونه) د سر مصنوعي وېښتڅ ، چې د ډول دپاره اچولے شي.یا د عدالت ججان ئې په سر کښېږدي.

**وګاټه** :- (و + ګا + ټ)(فعل) د ,,ګټل،، مصدر څخه د ماضي فعل.

**وګټه** :- (و + ګ + ټَ)(و ـــ وګاټه).

**وګد** :- (و + ګ + د)(و ـــ وږد یا اوږد) .

**وګدم** :-(و + ګ + د + م)(اس،مذ)(ترکاني) ناګهانه مرګ ، مناجات.

**وګړے** :-(و + ګ + ړے)(اس،مذ ،ج ـــ ړي) سړے ، کس ، فرد خلق ، اولس.

**وګم** :- (و + ګ + م)(و ـــ وږم).

**وګمه** :- (و + ګ + مَ)(و ـــ وږمه).

**وګورم** :- (و ګو + رم)(فعل) د ,,ګورل،، مصدر څخه د شرطي ماضي فعل (واحد متکلم).

**وګورو** :-(و + ګو + رو)(فعل) د ,,ګورل،، مصدر څخه د تمنائي یا د شکي ماضي (جمع متکلم) فعل.

**وګوره** :- (و + ګو + رَ)(فعل) د ,,ګورل،، مصدر څخه د امر فعل.

**وګوري** :- (و + ګو + ري)(فعل) د ,,ګورل،، مصدر څخه د تمنائي یا د شکیې ماضي فعل (غایب صیغه).

**وګورئ** :- (و + ګو + ر + ئ)(فعل) د ,,ګورل،، مصدر څخه .د امر (جمع) فعل.د شکئې ماضي فعل (جمع حاضر).

**وګورے** :- (و + ګو + رے)(فعل) د ,,ګورل،، مصدر څخه د تمنائي یا د شکئې ماضي فعل (واحد حاضر).

**وګي** :- (و + ګي)(و ـــ وږي یا اوږي).

**وګي** :- (و + ګي) (و ـــ وږي).

**وګے** :- (و + ګے)(و ـــ وږے یا اوږے).

**وګے** :- (و + ګے)(و ـــ وږے).

**ول** :- (و + ل)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) تاؤ ،پېچ،حلقه،کړۍ ،اړیکه ، خنډ ، غولۍ ، ګرداب ، قیمت ، بیعه ، بهانه ، نقص.

د احول په دید کښې ول دے

چې یو دوه ویني احول دے (

ارزاني)

**ـــ اچول** :- په روان کار کښې بندېز اچول ، اړیکه اچول ، په کار کښې خنډ پیدا کول.

**ـــ په / پرول**:- (ـــ پ / پ + ر + و + ل)(پ تر ، صف) د ول دپاسه بل ول لرونکے ، پېچ در پېچ ، تاؤ راتاؤ.

**ـــ جوړول** :- کړۍ یا حلقه جوړول. چاته لومه جوړول ، تګي جوړول.د دوکې ورکولو کوښښ کول.

**ـــ جوړېدل** :- بهانه جوړېدل.

**ـــ وتل** :- پېچ وتل ، کوږوالے لرې کېدل. مجازاً: کبر ، لوئي نۀ پاتې کېدل. (عموماً د نفي په شکل کښې استعمالېږي) .لکه : پړے وسوځي خو ول ئې نۀ ووزي.(متل).

**ـــ ورکول** :- (و ـــ ول اچول).

**ـــ کېدل** :- پېچ جوړېدل ،پېچیده کېدل ،تاوېدل (د څۀ نه) خنډ کېدل ، اړیکه کېدل.

**ـــ ول کول** :- تاؤ راتاؤ کول ، حلقه حلقه کول.لکه : زلفې ولول کول.

**ـــ ول کېدل** :- تاؤ راتاؤ کېدل،پېچ درپېچ کېدل،حلقه حلقه کېدل.

**ـــ ول** :- (ـــ و + ل) د ,,وستل،، مصدر فعلي خبر دے چې د الفاظو په منځ کښې لګي او ددغې مصدر فعلونه جوړوي .وړاندې ترې را ، ور ، در توري لګي او ورستو ترې ضمیري لاحقې لګولے شي . لکه : راولي ، راولې ، راولئ ، راولم او راولو.

**ول** :- (و + ل) د ,,چل،، تابع مهمل دے . په معنا کښې ئې زور پیدا کوي. (و ـــ چل).

**ول** :- (و + ل)(اس،مذ) ګرمه هوا ، باد سموم.

**ول** :- (ؤ/ وِ + ل) د ,,ویل،، لنډیز شکل دے.لکه : ماول تۀ به کله راځې.

**ـــ ول** :- (ـــ و + ل)(لاحقه) د پښتو مصدري لاحقه ده.د صفت وغیره کلماتو ره لګولے شي.لکه : (ورک + ول).

**ول** :- (وُ + ل)(اس،مذ ،ج ـــ ونه) اندازه ، صحیح اندازه.

**ول** :- (و + ل)(اس،مذ ،ج ـــ ونه) د دروازې تنبه.

**ول** :- (وُ +ل)(اس،مذ ،ج ـــ ونه) د اعتدال حد .

**ول** :- (وُ + ل)(اس،مذ ،ج ـــ ونه) هوش ، د عقل دوستي.

**ولا** :- (و + لا)(ع ،اس،مو،ج ـــ ګانې) محبت ، مینه ، الفت ، دوستي.

**ولا** :-(وِ + لْ + لا)(انګ،اس،مو،ج ـــ ګانې) د ښهرئې نه لرې جوړ شوے تفریحي کور، کور . (اوس عموماً د بنګلو او ماڼیو نومونو کښې استعمالېږي).

**ولا** :- (و + (ل) + لا) د ,,والله،، لنډیز شکل دے.د قسم په طور وئیلے شي.

**ـــ اخیستل** :- لکه : تۀ ولا واخله چې... (غالباً د والله بدل شکل دے).

**ولات** :- (و + لا + ت)(و ـــ ولایت).

**ولادت** :- (و + لا + د + ت)(ع،اس،مذ ،ج ـــ ونه) پیدا کېدنه ، پیداوښت ، پیدائش.

**ـــ کېدل** :- پیداکېدل ، پیدائش کېدل.

**ولۀ** :- (و + ل) د ,,ول،، بدل شکل دے چې ځینو مغیره ؤ تورو سره راځي.

په ربښتیا کښې زوال نشته

دا زما کلام په ولۀ دے (خوشحال)

**ولاړ** :- (و + لا + ړ)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) اودرېدلے ، ودرېدلے ، استاده ، قائم چې حرکت نۀ کوي. بند لکه : باران ولاړ دے.

**ـــ ستورے** :- (ـــ س + تو + رے)(پ تر،اس ،مذ ،ج ـــ ري) هغه ستورې چې خپل ځاے نۀ بدلوي.

**ټینګ ـــ** :- (ټي + ن + ګ ـــ)(پ تر،صف ،مذ) مضبوط ودرېدلے ، په خپل ځاے قایم . لکه : په خپله خبره ټینګ ولاړ.

**ـــ سه / شه** :- (ـــ س / ش)(فعل) د ,,ولاړېدل،، مصدر څخه د امر فعل . ودرېږه.لاړ شه ، ځه ، درومه.

**ـــ تیا** :- (ـــ ت + یا)(و ـــ ولاړ توب).

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب)(پ تر ، اس ، مذ) د ودرېدلو حالت ، ودرېدنه ، قیام ، استادګي.

**ـــ راغے** :- (ـــ را + غے)(جمله) تېر شۀ ، تېر هېر شۀ ، پاتې نۀ شۀ ، اوس

نشته ، هېرول ئې پکار دي.

**په ـــ ولاړ** :- (پ ـــ پ+ش/خ + ړ ) د لږ ساعت دپاره .

**ـــ شئ / سئ** :- (ـــ ش /س + ئ)(**فعل**) د ,,ولاړېدل،، مصدر څخه د امر **فعل**. لاړ شي ، ځئ-ودرېږئ ، پاڅئ.

**ـــ کول** :- ولاړول ، ودرول.

**ولاړ** :- (و +لا+ ړ )(**فعل**) د ,,ولاړل،، مصدر څخه د ماضي (واحد غائب) فعل ، لاړ تللی دی . د ولاړېدل یا ولاړ کېدل مصدر په فعلونو کښې استعمالېږي.لکه : ولاړ به شي ، ولاړ شه.

**ـــ ځاړیدل ، د چانه** :- په ولاړه ولاړه د چا نه قربانېدل. مجازاً: ډېره زیاته مینه چا سره لرل.د هغهٔ دپاره هرې قربانۍ ته تیار ,,بودل،، .

**ـــ فصل** :- (ـــ ف + ص + ل)(پ تر ،اس،مذ،ج ـــ ونه) هغه فصل چې په پټې کښې ولاړ وي (لا رېبلای شوی نهٔ وي) لکه : ولاړ فصل ئې رابانې وچ کړی دی.

**ولاړل** :- (و +لا+ ړ + ل)(**فعل**) د ,,ولاړل،، مصدر څخه د ماضي (جمع غائب) **فعل** ، لاړل ، تللي دي.

**ولاړم** :- (و +لا+ ړ + م)(**فعل**) د ,,ولاړوم،، لنډیز شکل دی.

**ولاړم** :-(و +لا+ ړ + م)(**فعل**) د ,,ولاړل،، مصدر څخه د ماضي (واحد متکلم) **فعل**.

**ولاړول** :- (و +لا+ ړ + ؤ + ل)(مص) ولاړ کول ، ودرول ، پاڅول ، استاده کول . لوستل ، پاڅول (خواندان).

**ولاړوونکې** :- (و+لا+ړ+وو+ن + کې)(پ تر ،اس ،فا ،ج ـــ کي) ودروونکې ، پاڅوونکې ، استاده کوونکې ، لوستونکې.

**ولاړو** :- (و +لا+ ړو)(**فعل**) د ,,ولاړوو،، لنډیز کل مونږ ولاړ وو.

**ولاړو** :-(و +لا+ ړو)(**فعل**) د ,,ولاړل،، مصدر څخه د ماضي (جمع متکلم) **فعل** ، مونږ لاړو.

**ولاړونه** :- (و +لا+ ړ +و + نَ)(حمص) ودرونه ، استاده کونه ،پاڅونه ، لوستنه ، پاڅونه.

**ولاړه** :- (و +لا+ ړَ)(اس ، مو ، ج ـــ ړې) ودرېدنه ،د ودرېدنه حالت ،قیام . د ناستې نه ولاړه ، او د ولاړې نه لاړه ښه ده.(متل).

**په ـــ** :- (پ ـــ) د ودرېدلو په حالت کښې .د قیام په حالت کښې. د لږ ساعت دپاره.

**ناسته ـــ** :- (نا + س + تَ ـــ)(پ تر ،اس،مو)کېښناستنه او پاسېدنه ، ناسته پاسته.حرکات سکنات ، عمل. هم مجلسي ، هم محبتي.

**ولاړۀ** :- (و +لا+ ړ)(**فعل**) د ,,لړل،، مصدر څخه د ماضي **فعل** ، ولړۀ ، ولړلو.

**ـــ راغله** :- (ـــ را + غ + ل)(پ تر ، اس ) تګ راتګ ، تلهٔ راتلهٔ ، رفت امد په داسې موقع وئیلې شي چې د کار وخت یا موقع نهٔ وي پاتې شوې. موقع د لاسه وتل. لکه : که نن دې دا کار وکړو خو ښه که نهٔ ئې نو بیا ولاړه راغله.

**ـــ ناسته** :-(ـــ نا +س + تَ)(پ تر ،اس،مو) ناسته پاسته ، په مجلس کښې شریکېدنه ، تعلق.

**ولاړېدونکې** :- (و+لا+ړې+دو+ن+کې)(پ تر ،اس ، فا ، ج ـــ ني) ولاړ کېدونکې ، ودرېدونکې ، پاڅېدونکې ، استاده کېدونکې.

**ولاړېدل** :- (و +لا+ ړې + د + ل)(مصدر) ودرېدل ، پاڅېدل ، استاده کېدل. راوتل ، راپیدا کېدل.

**ولاړېدنه** :- (و+لا+ړې + د + نَ)(حمص) ودرېدنه،پاڅېدونه،استاده کېدنه.

**ولاړې** :- (و +لا+ ړې)(**فعل**) د ,,ولاړل،، مصدر څخه د ماضي (واحد حاضر) **فعل** ، لاړې.

**ـــ اوبۀ** :- (ـــ او + ب)(پ تر ،اس،جم ) هغه اوبهٔ چې په ځاے ولاړې وي ډنډ.

**ولان** :- (و +لا+ ن)(صف ،مذ ،مو ـــ ه) بلد ،عادت ، عادي.

**ولاند** :- (و +لا+ ن + د )(اس ، مذ ، مو ـــ ه) د مړو لنبوونکې ، غسل ورکونکې ، غاسل ، غسال.

**ولانده** :- (و+لا+ ن + دَ)(اس،مو،ج ـــ دې) د مړو لنبونکې ښځه ، غساله.

**ولانګه** :- (و +لا+ ن + ګَ)(اس،مو،ج ـــ ګې) د مړو د لنبولو تخته ، پتارئ. د چهار عرشه ، لنګر.

**ولایت کور** :- (و +لا+ ي + ت + کو + ر)(اس ، مع) د سنګر خېلو ځانګه ده. (سنګر خېل ، یوسف خېل ، عیسیٰ خېل) مهمند دي).

**ولایت** :- (و +لا+ ي + ت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ملک ، سلطنت. لکه : قطبي ولایتونه. صوبه ، د یو ملک لویه علاقه چې د کوم لوی حاکم د حکم لاندې وي. لکه : د کابل ولایت. انګلستان ، د پیرنګیانو ملک.

**ـــ پاس** :- (ـــ پا +س)(فپ ، تر ، صف) هغه سړی چې د انګلستان د کوم کالج یا یونیورسټۍ نهٔ ئې ډګري اخستې وي.

**ـــ مونـدل** :- د ولي درجه موندل ، ولي کېدل ، بزرګ کېدل ، د خدای دوست ګڼلی کېدل.

**ولایت** :- (وَ/و +لا+ ي + ت)(ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه)ولي توب ، ولي کېدنه ، سرپرستي.محافظت ، دوستي. د ,,ولي الله،، مرتبې ته رسېدنه ، ولي (بزرګ) جوړېدنه.

**ـــ غوښتل** :- لویه مرتبه غوښتل ، د ولي مقام غوښتل.

**د ـــ صاحب** :- (د ـــ صا + ح + ب)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) بزرګ ، ولي.

**ولایتي** :- (و +لا+ ي + تي)(فپ تر ، صف) ,,ولایت،، سره تعلق لرونکې ، ولایت ته منسوب ، ملک یا علاقې ته منسوب. په ولایت (انګلستان) کښې جوړ شوی ،د انګلستان د ملک سره تعلق لرونکې.

**ـــ مال** :- (ـــ ما + ل)(فپ ،تر،اس ، مذ ، ج ـــ ونه) هغه سامان کوم چې په ولایت (انګلستان) کښې تیار شوی وي.

**ولت** :- (و + ل + ت).

**ولټ** :- (ـــ ټ)(و ـــ وولټ).

**ـــ میټر** :- (ـــ مي + ټ + ر)(و ـــ وولټ میټر.

**ولجه** :-(وُ+ل + ج)(اس ، مو ، ج ـــ جې) لوټ ، تالان ، شوکه ، الوجه ،د غنیمت مال ، اولجه.

**ولجه** :-(وُ + لْ + جَ)(اس ، مو ، ج ـــ جي) بهانه ، حیله ، مکر ، فریب.

**ولجې** :- (و +ل + جې) د ,,ولجه،، جمع ده . د ,,ولجه،، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ جوړول** :- بهانې جوړول ، حیلې بانې کول ، حیله سازي کول.

**د ـــ مال** :- (د ـــ ما +ل)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) اولجه شوی مال ، د شوکې مال ، د غنیمت مال.

**ـــ کول** :- لوټ کول ، شوکه کول ، د لوټ مال تر لاسه کول ، د غنیمت مال تر لاسه کول ، اولجه کول.

**ـــ کېدل** :- لوټ کېدل ،(مال) په لوټ کښې تلل (مال وغېره) شوکېدل.

**ولچو** :-(و +ل+ چو)(پ تر ، تورې) د ,,والله څو،، لنډیز شکل دی. ولچو دا کارونه کړې ، نهٔ دې پرېږدم.

**ولچه** :-(و +ل + چَ)(پ تر ، تورې) د قسم او شرط تورې .د ,,والله چې،، لنډیز شکل دی.

**ولځه** :- (و +ل + (ت) س) (اس ، مو ، ج ـــ ځې) مېلمه له د ډوډۍ ورکولو وار.
**ولخه** :- (و+ل +خَ) (اس ،مو ،ج ــ خې) بیابان ، صحرا ، دشت.
**ولد** :- (و + ل + د ) (ع . اس ، مذ ) زوے ، پسر.
**ـــــ الحرام** :- (ـــ (د+ل) ح +را + م) (ع تر ، اس ، مذ ، مو ـــ ه) هغه چې د حرامکارۍ په نتیجه کښې پیدا شوې وي.حرامي.
**ـــــ الزنا** :- (ـــ (دُ+ز) + ز + نا ) (ع تر ، صف) د زنـا څخـه پیـدا شـوے ، حرامي.
**ولدوزي** :- (و + ل + دو + زي) (اس ، مو) په جامو وېرغه د ګلونو جوړولو یو قسم.یو قسم ګنډ چې په جامو پرې ګلونه جوړولے شي.
**ولـدیت** :- (و + ل + دي + ي + ت) (ع ، اس ، مـذ ) پلاروالے ، د پـلار نـوم ، خاندان.
**د ـــ خانه** :- (د ـــــ خا + نَ) (عپ تر ،اس ، مو ،ج ـــ نې) په فـارم کښې هغه کور چې په کښې د فـارم د خاوند د پـلار نوم لیکلے شي.د پـلار د نوم خان.
**ولره** :- (وُ + ل + رَ) (فعل) د ,,لرل،، مصدر نه د امر فعل وساته.
**ولرئ** :- (و+ل+ر+ ئ) (فعل) د ,,لرل،، مصدر نه د جمعې د امر فعل ،وساتئ.
**ولړه** :- (و + ل + ړَ) (فعل) د ,,لړل،، مصدر نه د امر فعل سره ګډ وډ کړه.
**ولس** :- (و + ل + س) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) خلق ، عـوام ، اولـس (اصلاً اولـس ، د ترکۍ لفظ دے).
**ــــ دوست** :- (ـــ دو + س + ت) (فپ تر ، صف، مو ـــ ه) خلقو سره دوستي لرونکے ، د عامو خلقو همدرد.
**ــــ واکي** :- (وا + کي) (پ تر ، اس ، مو) د اولس اختیارمندي ، جمهوریت.
**ـــ واکي** :- (ــــ وا + کي) (پ تر ، صف ، ج ـــ کې) هغه نظام چې په کښې اختیار د اولس وي.جمهوري.
**ــــ واله** :- (ـــ وا + لَ) (پ تر ، اس) د عوامو سره یو شان والے.عوامیت د عامو خلقو ژوند ، دود دستور وغېره (اولس واله).
**کلے ـــ** :- (ک + لے ـــ) (پ تر ،اس،مو) کلے او د کلي اولس، په کلي کښې یو بل سره تعلق ساتنه ، په غم ښادۍ کښې شریکېدنه ،
**د کلـي ـــــ** :- (د ، ک + لـي ــــ) (پ تـر ، اس ، ج) د کلـي خلـق ، د کلـي اوسېدونکي ، کلي وال ، د کلي اولس.
**کلے ـــ کول** :- د کلي خلقو سره تعلقات ساتل ، د کلي د خلقو په غم ښادۍ کښې شریکېدل.(کلے اولس کول).
**ولسي** :- (و + ل + سي) (پ تر ، صف) اولس سره تعلق لرونکے ، د عوامو سره تعلق لرونکے ، عوامي ، د عامو خلقو.د عوامو.(اولسي).
**ـــ جرګه** :- (ـــ ج + ر + ګَ) (پ تر، اس مو ، ج ـــ ګې) د عـامو خلقو جرګه ، د عوامو جرګه، د عـامو خلقـو نمائنـدګي کـوونکے ، ټـولے (اولسـي جرګه).
**ـــــ خلق** :- (ـــ خ + ل + ق /ک) (پ تر ،اس،ج) عـام خلق ، عـوام .عـوام الناس.
**ــــ ژبې** :- (پ تر ،اس،ج) د عامو خلقو ژبې ، عوامي ژبې ، اولسي ژبې.
**ـــــ معارف** :- (ـــ م + عا + ر + ف) (پ تر ، اس ، ج) عـوامي علـوم ، (اولسي معارف).
**ولسـونه** :- (و + ل + سـو + نَ) د ,,وس،، جمع ده .اولسـونه .خلـق ، عـوام ، قومونه .لکه: مشرقي اولسونه .ډېر زیـات خلق ، د خلقـو ډېره لویـه جمع ، مخلوقات.
**ولشـل** :-(و + ل + ش + ل) (و ـــ لوشـل) د غـواؤ مېښـو وغېـره ؤ د غلانځو او تیونو نه پئ راوښکونکے.
**ولشونے** :- (و + ل + شو + نے) (اس ، مذ ، ج ـــ نې) هغه لوښے چې په کښې پئ لوشلے شي.(لوشونے) (و ـــ ولشونکے).
**ولشونکے** :- (و + ل + شو +ن+کے) (پ تر ، اس ، فا ، ج ـــ کي) لشونکے ، د عوا مېښو وغېره ؤ د تیونو نه پئ راوښکونکے.
**ولښه** :- (و + ل +خ/ش) (اس،مو،ج ــ ښې) کوچ ، کوچ کونه ، په سفر روانېدنه مجازاً : انتقال ، مړ کېدنه ، مرګ.
**ـــ کول** :- کوچ کول ، په سفر روانېدل ، مجازاً : انتقال کول ، مړ کېدل.
**ولغ** :- (و + ل + غ) لغ ، لغړ.
**ولغاکے** :- (و + ل + غا + کے) (پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ کي) هغه ځا ے چې تـه چې ډېرې ولې بهېږي، جوئبار.
**ولغولے** :-(و + ل + غو + لے) (اس ، مذ ، ج ـــ لي) یو غرئیز بوټے دے چې د څاروو خوراک دے.
**ولغه** :- (و + ل + غ) (اس ، مو ، ج ـــ غې) شنه کوتره ، ځنګلي کوتره.
**ولقه** :- (و + ل + قَ) (اس ، مو ،ج ــ قې) حواله ، سپارښتنه ، سپارنه .تصرف ، قبضه.د تصرف دائره.علاقه ، احاطه ، منطقه.
**په ـــ کښې** :- (پ ـــ کې) (پ تر ،تف) په قبضه کښې ، د تصرف په دائره یـا حد کښې.په علاقه کښې.
**پـه ـــ کښې راوستل** :- پـه قبضه کښې راوستـل ، مـوټي کښې راوستـل .پـه تصرف کښې راوستـل.په علاقه کښې شاملول.
**ولک** :- (و + ل + ک) (اس ، مذ ، ج ، ان) ملک ، جاګیر دار.
**ولکه** :- (و + ل+کَ) (اس،مو،ج ــ کې) اقلیم ، (ترکي : اولکه).
**ولکئ** :- (و + ل + ک + ئ) (اس،مو) د ونې وغېره ریښه.
**ولګر** :- (و + ل +ګ+ر) (اس،مذ ،ج ــ ان) د قیمت مقرروونکے ، د بیعې ټاکنه کوونکے ، نرخ مقرروونکے ، حلقه انداز.
**ولګرد** :- (و + ل +ګ + ر + د ) (ف ، صف) پوچ ، پوچه وینا ، غېر مهذبـه لفظ یا خبره.
**ولګم** :- (و + ل +ګ + م) (فعـل) د ,,لګېدل،، مصـدر نـه د تمنائي یـا شرطیه ماضي (واحد متکلم صیغه).
**ولګو** :- (و + ل + ګو) (فعل) د ,,لګېدل،، مصدر نه د ماضي شرطي یا تمنائي فعل.(د جمع متکلم صیغه).
**ولګو** :- (و +ل +ګو) (اس ، مذ) د کور اسباب او اثاثه.
**ولګه** :- (و + ل + ګَ) (و ـــ لوړه) (و + ل+ګ تلفظ هم لیدلے شوے دے).
**ولګئ** :- (و + ل +ګ + ئ) (فعـل) د ,,لګېـدل،، مصـدر نـه د شـرطي یـا تمنائي ماضي فعل (جمع حاضر صیغه).
**ولګي** :-(و + ل + ګي) (فعـل) د ,,لګېـدل،، مصـدر نـه د تمنـائي یـا شـرطي ماضي فعل (د غائب صیغه).
**ولګې** :- (و + ل + ګې) (فعـل) د ,,لګېـدل،، مصـدر نـه د شـرطي یـا تمنـائي ماضي (واحد حاضر صیغه).
**ولل** :- (و +ل+ل) (مص) وینځل ، مینځل ، پاکول ، صفا کول.
**وللے** :-(و + ل + لے) (پ تـر ، اس ، مـف ، ج ــ لـي) ویـنځلے شـوے ، میـنځلے شوے ، شُسته.
**ولم** :- (و + ل + م) (فعل) د ,,ولل،، (ویشتل) مصدر څخه د حال فعل.(واحد متکلم صیغه).
**ولمه** :- (و + ل + م) (اس ، مذ) مېلمه ، مهمان.
**ولمه** :- (و + ل + مَ) (اس ، مو ، ج ـــ مې) د څپلۍ پېزار د تلي برنے مخ.
**ولمنه** :- (و + ل + م + ن) (اس ، مو ، ج ـــ نې) مېلمنه.
**ولمورې** :- (و + ل + مو + رې) (اس ، مذ) د ماشومانو یو مرض چې قې او

دست پرې لګي ـ (عموماً دا مرض پرې د اړولې کېدو يعني سـر د لاندې کېدلو په وجه لګي ـ پ ت) اورمولے هم ورته وائي) ـ

**ـــ کول** :- په ماشوم د ,, ولموري ،، (قې او دست) مرض لګول ـ

**ـــ کېدل** :- په ماشوم د ولموري (قې او دست) مرض لګېدل ـ

**ولن** :- (و + ل + ن) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) په ډرامه يا فلم وغيره کښې هغه کردار چې د وران کارۍ رول ادا کوي، د بد يا خراب سړي کردار ادا کوونکے ـ

**ولنګ** :-(و + ل + ن + ګ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه / ان) انار ـ

**ولنګ** :-(و + ل + ن + ګ) (حمص) وينځنه ، مينځنه ، ولنه ـ

**ولنګ** :-ويت ، پرانستې غېږ ـ

**ولنګار** :- جتړ ، بې ترتيبه سړے ، غېر مهذب ، بې ډبه ـ

**ولنه** :- (و + ل + نَ) (حمص) وينځنه ، مينځنه ، په اوبو سره صفا کونه ـ

**ولو** :- (و + لو) د ,,ولې ،، (جمع) بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ لکه : خپل د د ولو مينځ دے (متل) ـ

**ولو** :- (و + لو) د ,,وله ،، بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ لکه : د ولو ځانګې ـ

**ولو** :- (و + لو) د ,,ولې ،، بدل شکل دے چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ لکه : د ولو اوبهٔ ـ

**ولوړه** :- (و + ل + ګ/ژ) (اس،مو،ج ـــ ړې) لوړه ، اوږے والے ، مرسنګي ـ

**ولوړې** :- (و + ل + ګي / ژي) د ,,ولوړه ،، جمع ده ـ د ,,لوړه ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ

**ـــ تېرول** :- ناهره يا ناهرې تېرول ، اوږے پاتې کېدل ـ

**ولول** :- (و + ل + و + ل) (مص) وئيل کول ، روښانول ، غوړول ـ

**ولولم** :- (و + ل + و + ل + م) (فعل) د ,,لولل ،، (لوستل) مصدر څخه د شرطي يا تمنائي ماضي فعل ـ (واحد متکلم صيغه) ـ

**ولوله** :- (و + ل ش+ و + ل) (فعل) د ,,لولـل ،، (لوستل) مصدر څخه ـ د امر فعل ـ

**ولوله** :- (و + ل + و + ل) (اس ، مو، ج ـــ لې) جوش و خروش ، ډېر زيات شوق ، شور زوږ ، واويلا ، غوغا ، (اصل معنا ئې دا ده خو پښتو کښې کم کوز استعمالېږي) ـ

**ـــ انګېز** :- (ـــ ان + ګي + ز) (ف تر ، صف ، مذ ـــ ه) ولوله پېدا کوونکے ، جوش پېدا کوونکے ـ

**ـــ راپېدا کېدل** :- جوش راپېدا کېدل ، د کوم کار دپاره ډېر زيات شوق پېدا کېدل ـ

**ولولو** :- (و + ل + و + لـو) (فعـل) د ,,لولـل ،، (لوسـتل) څخـه د شـرطي يـا تمنائي ماضي فعل (د جمع متکلم صيغه) ـ

**ولولئ** :- (و + ل + و + ل + ئ) (فعل) د ,,لولل ،، (لوستل) مصدر څخه ـ د امر (جمع) فعل ـ شرطي ، تمنائي ماضي فعل (جمع حاضر صيغه ـ

**ولونے** :- (و + لو + نے) (پ تر ، اس ، فا ، ج ــ نې) وينځونکے ، د وينځلو واله ، دوبي ـ لنبولو واله ، غسل ورکوونکے ، غاسل ـ

**ولهٔ** :- (و + ل) (حمص) وينځنه ، په اوبو سره پاکونه ـ

**وله** :-(و + لَ) (حرف) د ,,ورلره ،، لنډيز شکل دے ـ ورله ، ورته ـ

**وله** :- (وُ + لَ) (فعل) د ,,وُلل ،، (ويشتل) مصدر څخه د امر فعل ـ

**وله** :- (و + ل) قسم ، سوګند ـ

**وله** :- (و + لَ) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) چل ، طور طريقه ، هنر ، حکمت ـ

**وله** :- (و + (ل +لَ) (اس ،مو،ج ـ ولې) جره ، وبخ (د بوټي) ـ

**وله** :- (و + لَ) (اس ، مذ ، ج ـ لې) د يو قسم ونې نوم ، بېد ـ

**وله** :- (و + لَ) (اس مو ، ج ـــ لې) والهٔ ,,ويالهٔ ،، د اوبو د بهېدو نرۍ لاره ـ

**وله** :- (و + لَ) (اس مو) متارکه ، جنګ بندي ـ

**ـــ کول** :- جنګ بندي کول ـ

**ولهٔ** :- (و + ل) (اس جم) لوستنه ، خواندن ،قسم ، سوګند ـ

**وله** :- (و + لَ) (فعل) د ,,ولل ،، مصدر څخه د امر فعل ، ووينځه ـ

**ولهٔ** :- (و + ل) (حمص) وينځنه ، وينځل ـ

**ولي** :- (و + لي) (فعل) د ,,ولل ،، مصدر نه د حال فعل (د غائب جمع واحد صيغه) ـ

**ولي** :-(و + لي) (اس ، مو ، ج ـ ګانې) د تار يا د رېښمو غونډارے ګولې ـ کوړکه ـ

**ولي** :- (و + لي) (اس ، مذ ، ج ـــ ان / اولياء) دوست ، سرپرست ، متولي ، مرسته کوونکے ـ بزرګ ، د خدا ے پاک دوست ـ

**ـــ الله** :- (ـــ ي + ل) + لا+ (ه) (ع ، تر ، اس مذ) د خدا ے تعالٰی دوست ، نېک او بزرګ سړے ـ

**ـــ عهد** :- (ـــ ع + هـ + د) (عف ، تر ، اس ، مذ) مشر شاهزاده ، هغه شاهزاده چې د بادشاه د مرګ نه وروستو ئې د بادشاه د مرګ نه وروستو ئې د بادشاه کېدو اعلان شوے وي ـ د بادشاه جانشين ـ

**ـــ نعمت** :- (ـــ ن +ع + م + ت) (عف تر ،صف،مذ ،مو ـــ) مهربان ، سرپرست ، پالنه کوونکے ، مالک ، صاحب ـ

**ولئ** :- (و + ل + ئ) (اس ، مو) الو بخارا ، چې په دېګ کښې اچولے شي ـ

**ولئ** :- (و+ل + ئ) (فعل) د ,,ولل ،، (ويشتل) مصدر څخه ـ د جمع امر فعل ـ د حال فعل (د جمع حاضر صيغه) ـ

**ولئ** :- (و+ل+ئ) (فعل) د ,,ولل ،، مصر نه د حال فعل (د جمع حاضر صيغه) ـ

**ولئ** :- (و + ل + ئ) (اس مو) رېشه ـ

**ولې** :- (و + لي) د ,,وله ،، جمع ـ د ,,وله ،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي ـ لکه : د ولې اوبهٔ ـ

**ولے** :-(و + لے) (اس،مذ) پال ، فال ـ

**ولے** :-(و + لے) (حرف) د تپوس يـا د استفهام تورے دے ـ ځينې وخت د تاکيدي مثبت جواب معنې هم ورکوي ـ لکه : تا څخه سل روپۍ شته ؟ جواب : ولې نشته ـ (نوټ ځينې وخت په نظم کښې لفظ ,,و + لے ،، هم راشي) ـ

**ولے** :- (و + لے) (اس،مذ) د الوګانو يو قسم چې د الوبخارۍ په شان تراوه وي ـ (غزني) ـ

**ولئے** :- (و + لے) د ,,ولـے ،، بدل شکل وينځلے شوے ـ

**ولېپانه** :- (و + لي + پا + نه) (اس،مو) يو قسم ګيا ده ـ چې د ولو په غاړه کېږي ـ چې د دانو دپاره په ملهم جوړولو کښې پکارولے شي ـ

**وليد** :- (و+لي +د) (ع ،صف ، مذ ، مو ـــ ه) زېږېدلے ، زائيده ـ

**وليد** :- (و + لي + د) (فعل) د ,, ليدل ،، مصدر څخه د ماضي مطلق فعل ـ

**وليدل** :- (و + لي + د + ل) (و ـــ وليدهٔ) ـ

**وليدلو** :- (و + لي + د + لو) (فعل) د ,,وليد ،، بدل شکل دے ـ ,,لو ،، په کښې زياتي دے ـ

**وليده** :- (و + لي + دَ) (فعل) د ,, وليد ،، تانيثي شکل دے ـ

**وليدهٔ** :- (و + لي + د) (فعل) د ,,وليد ،،بدل شکل دے ـ ,,ه ،، په کښې تېرے ده ـ

**وليدے** :- (و + لي + د ے) (فعل) د ,,وليد ،، جمع ده ـ

**ولېږم** :- (و + لي + ګ /ژ + م) (فعـل) د ,,لېږل ،، مصـدر څخـه د تمنـائي يـا شرطيه ماضي فعل (واحد متکلم صيغه) ـ

**ولېږو** :- (و + لي + ږو / ګو) (فعل) د ,, لېږل ،، مصدر څخه د تمنائي يا شرطي

ماضي فعل (جمع متكلم صيغه).

**ولېږي** :-(و + لـې + گـي / ژي) (فعـل) اولېـږي -د ,,لېـږل،، مصـدر څخـه د شرطيه يا تمنائي ماضي فعل. (واحد اوجمع غايب صيغه).

**ولېږئ** :- (و + لې + گ/ژ ئ) (فعل) د ,,لېږل،، مصدر څخه د شرطي تمنائي ماضي فعل. (جمع حاضر صيغه).

**ولېږې** :- (و + لـې + گـې / ژې) (فعـل) د ,,لېـږل،، مصـدر نـه د تمنـائي يـا شرطيه ماضي فعل. (واحد حاضر صيغه).

**ولېشت** :- (و + لې + ش + ت) (اس، مو، ج ـــ تې) لېشت، لوېشت، د کتې گوتې د سرنه د قچې گوتې تر سره پورې فاصله، د کچ يوه اندازه بالشت.

**ولېشتکې** :- (و+لې+ش+ت+کې) (پ تر، صف، اس، ج ـــ کي) د يو لېشت هومره، مجازاً : مندرې، کوتاه قد، لېشتونک، لوېشتونک.

**ولېشه** :- (و + لې + ش) (اس، مو، ج ــــ شې) هغه لرگينه اله چې وړې پرې رېشلې شي -پتېره.

**وليک** :- (و + لې + ک) (حرف) د ,,ولېکن،، لنډيز شکل -مگر، منگر.

**ولېگنده** :- (و + لې + گ + ن + دَ) (اس، مو، ج ـــ دې) د تندي هغه برخه چې غوږونو ته نژدې وي. لکه : په ولېگندو درد کېدل.

**وليمه** :- (و + لي + مَ) (ع، اس، مو، ج ـــ مې) د وادهٔ نه پس خپلو خپلوانو او دوستانو له خوړه ورکول.

**ــــ کول** :-د وادهٔ نه پس خپلو خپلوانو، دوستانو له ډوډۍ ورکول. مطلق مېلمستيا (عموماً په اولنۍ معنا کنبې استعمالېږي).

**وليو** :- (و + ل + يو) د ,,وُلي،، (جمع) بدل شکل چې د مغيرهٔ تورو سره راځي.

**د ـــ مينځ** :- (د ـــ م + ن + (د) ز) د بدن هغه برخه چې د ولو د هډوکو په مينځ کنبې وي. مجازاً : خپل عيب يا نقص چې بني ادم ئې نهٔ ويني.

**وم** :- (و+ م) (فعل) ناقص فعل دے. د واحد متکلم صيغه.

**ـــ وم** :- (ـــ وُ + م) (حرف) د شمېر د درجې ښودلو تورے دے. لکه: او وُم.

**وُم** :- (و + م /مـو) ,,و،، د فعـل سـابقه ده او مُ /مـو د جمـع مـتکلم يـا جمـع مخاطب ضميرونه ده. يو ځاے استعمالېږي. لکه : وموليدل.

**وم** :- (و + مِ/ مـې) پـه دې کنبـې ,,و،، د فعلونـو سـابقه ده او ,,م،، د واحـد متکلم ضمير دے. لکه : ومې وے.

**ومارگه** :- (و + ما + ر + گَ) (اس، مو، ج ـــ گې) مردار دانه.

**ومان** :-(و + ما + ن) (اس، مذ) يو قسم بوټے، بندک.

**ومانځه** :- (و + ما + ن (د) زَ) (و ـــ ونمانځه).

**ومانډه** :- (و + ما + ن + ډ) (فعل) د ,,منډل،، مصدر څخه د ماضي فعل.

**ومانهٔ** :- (ؤ + ما + نَ) (فعل) د ,,منل،، مصدر نه د ماضي مطلق فعل.

**ومړ** :- (و + م + ړ) (فعـل) د ,,مـړل،، مصـدر څخـه د ماضـي فعـل (واحـد غائب صيغه).

**ومړئ** :- (و + م + ړ + ئ) (اس، عدد) د ,,ومړے،، تانيثي شکل دے.

**ـــــ خور** :- (ـــــ خو + ر) (پ تر، اس، مو) د يـوې مياشـتې نـوم دے - د ربيـع الاول مياشت.

**ومړے** :- (و + م + ړے) (صف، مذ، ج ـــ ړي) کچه، اوم.

**ومړے** :- (و + م + ړے) (اس، عدد) وړومبے، اولنے، وړنبے.

**ومښت** :- (و + م + خ/ش+ت) (فعل) د ,,مښتل،، مصدر څخه د ماضي فعل.

**ومنه** :- (و+ م + ن) (فعل) د ,,منل،، فعل څخه د امر فعـل -يقين وکـه، اعتبـار وکړه، (يعني زهٔ رښتيا وايم).

**ومو** :- (و + مو) په دې ,,مو،، د جمع متکلم يا د جمع حاضر ضمير دے.

چې د واو د شورو کيدونکو فعلونو په مينځ کنبې راځي. لکه وموويشت، ومو کوت

**وموند** :-(و + مـو + ن + د) (فعـل) د ,,مونـدل،، مصـدر څخـه د ماضـي فعـل، بيامونډ

**ومونډلو** :- (و + مو + ن + د + لو) د ,,وموند،، بدل شکل دے. ,,لو،، په کنبې ورزيات کړے شوے دے.

**ومونده** :- (و + مـو + ن + د) د ,,ومونـد،، بـدل شـکل - ه - پـه کنبـې تېـرے ور زياته کړې شوې ده.

**ومه** :- (و + مَ) د ,,وم،، بدل شکل (اخري ه ئې تېرے ده).

**ومه** :- (و + مَ) (و ـــ ومان).

**ومې** :- (و + مې) په دې کنبې ,,مې،، د واحد متکلم ضمير دے. چې د هغو فعلو په مينځ کنبې راځي. چې د ,,و،، څخه جوړولے شي. لکه : ومې ښکه، ومې ليد.

**وميند** :- (و + مي + ن + د) (و ــ وموند).

**ون** :- (و + ن) (انگ، اس، عدد) يو، واحد.

**ون** :- (و + نَ) د ,,وُنه،، لنډيز شکل. درخته.

**ــ ون** :- (ـــ وو + نَ) (لاحقه) د ,,ـــ وونه،، لنډيز شکل دے.

**ـــ وے ټريفک** :- (ـــ وے + ټ + رې + ف +ک) (انگ تر، اس) يو مخيزه لار، داسې سړک چې گاډي وغېره د يوې مخې پرې تلے شي خو د بلې مخې پرې نشي راتلے. ون وے ټريفک.

**ونج** :-(و + ن + ج) (هـ، اس، مذ) عوض، بدل، لېن دېن. تجارت، وپار (هـــ بنج)

**ونـج** :- (و + ن + ج) (اس، مـذ، ج ـــــ ونـه) د ځيزونـو د کنبېښـودلو دپـاره لرگينه پېنبو واله چوکۍ.

**ــــ وپار** :- (ـــ و + پا + ر) (هـ، اس، مذ) تجارت، لېن دېن، بيوپار.

**گړ ـــ ونج** :- (گ + ړ ــــ) (پ تر، اس، مذ، ج ـــ ونه) هغه لرگينه پېنبو واله چوکۍ چې گړے (منگي) پرې کنبېښودے شي.

**ونجړے** :- (و + ن + ج + ړے) (اس، مذ، ج ـــ ړي) د ,,ونج،، تصغير دے - د لوښو وغېره د کنبېښودلو وړه چوکۍ.

**ونجول** :-(و + ن + ج + ؤ + ل) (مص) بدلول، تبديل کول.

**ونجولے** :- (و + ن + ج + و + لے) (اس، مف، ج ـــ لي) بدل کړے.

**ونجېده** :- (و + ن + جې + د) (حمص) بدلېدهٔ، تبديل کېدهٔ.

**ونجېدلے** :- (و + ن + جې + د +لے) (پ تر اس، مف، ج ـــ لي) بدلېدل، تبديل کېدل.

**ونځل** :-(و + ن + (د) ز + ل) (و ـــ وينځل).

**وند** :- (و + ن + د) د ,,وندل،، مصدر ماده. کنځل، بد رد.

**ـــــ وند** :- (ـــــ و + ن + د) (لاحقه) فارسي لاحقه ده - د الفاظو نه وروستو لگولے شي او د خاوند مالک وغېره معنې شيندي. لکه : خداوند.

**وند** :- (و + ن + د) (اس، مذ، ج ـــ ونه) بند.

**وند** :- (و + ن + د) ولکه، علاقه.

**وند** :- (و + ن + د) (اس، مذ، ج ـــ ونه) پشته، بند، هغه بند چې د درياب په مخکنبې اچولے شوے وي.

**ـــ ترل** :- بند ترل، اوبو ته بند جوړول.

**وند** :- (و + ن + د) (اس، مذ، ج ـــ ونه) خندق، کنده.

**وند** :- (و + ن + د) (اس، مذ، ج ـــ ونه) زره جامه.

**ـــ خور** :- (ـــ خو + ر) (پ تر، صف) زړې جامې خوړونکے، هغه ځاروے چې زړې جامې يا چيړې رېښې وغېره خوري.

**وندر** :- (و + ن + د + ر)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) د څارويو د مرۍ هغه پړے چې حلقـه غونـدې تـرې جـوړه شـوې وي . (ځينـې وخـت ئـې جمـع ,,وندرے،، (مؤنث) هم راځي .

**دسر ــــــ** :- (د + س + ر ـــ) د څناورو ، څاروو د مرۍ پړے . د غاړې د بند پړے . د تازي د سرونو په وندر کښې به غاړه بند وي .

**وندره** :- (و + ن + د + رَ) د ,,وندر،، تانيثي شکل دے .

**وندل** :- (و + ن + د + ل)(مص) کنځل کول ، زيړې کول .

**وندل** :-(و + ن + ے د + ل)(اس،مذ،ج ـــ ونه) د کاغذونو يوه دسته ،بنډل .

**وندلے** :-(و + ن + د + لے)(پ تر ،اس،مف،ج ـــ لي) کنځلے شوے .

**وندنه** :- (و + ن + د + نَ)(حمص) کنځل کونه ، زيړې کونه .

**ونډنے** :- (و + ن + د + لے)(اس،مذ،ج ـــ ني) هغه پړے چې د څاروو وغيره ؤ پښه پرې تړلے شوې وي .

**وندنے** :- (و + ن + د + لے)(اس،مذ،ج ـــ ني) د وښو يا د نرۍ څانګو نه جوړ شوے عارضي پړے شان چې ګېډۍ پرې تړلے شي . د وښو د ګېډۍ د تړلو دپاره د تاؤ شوو وښو پړے .

**وندول** :- (و + ن + د + ؤ + ل)(مص) دليل راوړل ، دليل غوښتل ، استدلال کول . دليل ورکول .

**وندونه** :- (و + ن + د + ؤ + نَ)(اس،حمص) دليل راوړنه ، يا دليل غوښتنه . استدلال ،دليل ورکونه .

**وندے** :- (و + ن + د ے)(اس،مذ) د بوجۍ وغيره د خولې د ګنډلو مزے يا نسۍ وغيره .

**ونديار** :- (و + ن + د + يا+ر)(اس،مو) ورندار ، د ورور ښځه .

**ونډ** :- (و + ن + ډ)(اس ، مذ ، ج ـــ ونه) ټکړه ، برخه ، بخره . د کر کروندې د زمکې يوه لويه ټوټه . د سپاهيانو يو ټولے . د خلقو يو ټولے .

**ـــــ ونډ** :- ټکړې ټکړې ، برخې برخې .

**ـــــ ونډ کول** :- ټکړې ټکړې کول ،حصې حصې کول ، په برخو کښې وېشل .

**ـــــ والا** :- (ـــــ وا + لَ)(پ تر،اس،مذ) د ونډ خاوند ،د زمکې د ټکړې مالک . حصه دار ، برخه لرونکے .

**ـــ کول** :- ټکړې کول ، په برخو کښې وېشل .

**ونډر فل** :- (و + ن + ډ+ ر + فُ + ل)(انګ ، تر) د تعريف او شاباسي کلمه ده . ډېر ښهٔ ! افرين ! ډېر ښکلے .

**ونـډو وے** :- (و + ن + ډو + وے)(پ تر،اس،مذ،ج ـــــ وي) حلال کـړے څاروے ټکړې ټکړې کوونکے ، قصاب ، کنارے .

**ونډه** :- (و + ن + ډَ)(و ـــــ ونډ)لکه : پـه دې شـاعرۍ کښـې د کـاکړو ونډه ښېخي لويه ده .

**ـــــ کـول** :- حصې حصې کول ، برخې برخې کول ،غوا مېښه په شريکه حلالول چې بيا وروستو ئې غوښې په خپله کښې تقسيم کړي .ونډې کول .

**ونـډه** :- (و + ن + ډ)(اس،مو،ج ـــ ډې) د مېښو خاص خوراک چې عموماً بوس او اوړهٔ وغيره سره يو ځاے کړي .

**ـــ کول** :- د مېښې خاص خوراک جوړول ، بوس ، اوبهٔ او اوړهٔ سره يو ځاے کول .

**ـــ ورکول** :- مېښې يا مېښو ته د خوراک دپاره ونډه کښېښودل .

**ونډۍ** :- (و + ن + ډ + ئ)(اس ، مو) حصه ، بخره ، ونډ .

**ـــ کول** :- حصې حصې کول ، برخې برخې کول ،د برخو کولو نه پس (په خپله کښې) وېشل ، تقسيمول . يو څاروے په شريکه اخيستل او د حلالولو نه پس ئې غوښې په خپله کښې وېشل .

**دــ غوښه** :- (د ـــ غ + و + خ/شَ)(پ تر ،اس،مو،ج ـــ ښې) هغه غوښه چې په شريکه حلاله کولو نه وروستو چا ته په تقسيم کښې ورسي .

**ـــــ ونډۍ** :- ټکړې ټکړې ، حصې حصې ، برخې برخې .

**ـــــ ونډۍ کول** :- برخې برخې کول ، په برخو کښې وېشلے کېدل .

**ـــــ کول** :- ونډۍ کول،د حلال کړي څاروي ټکړې کول . د حلال کړي څاروي ټکړې په خپله کښې وېشل ، تقسيم کول .

**ـــــ کېدل** :- برخې برخې کېدل ، حصې حصې کېدل ، تقسيمېدل . په شريکه د حلال کړي څاروي غوښې وېشلے کېدل .

**ـــــ وړل** :- برخې وړل ، ټکړې وړل .

**ونـډي** :- (و + ن + ډي)(پ تر ،اس،مـذ ،ج ـــــ ان) د ,,ونـډ،، خاوند ،برخـه لرونکے ، حصه دار .

**ـــــ مار** :- (ـــــ ما + ر)(پ تر ،اس ،مذ ،ج ـــــ ان) ونډۍ کوونکے ، حصې بخرې کوونکے ، په شريکه د حلال کړي څاروي برخې برخې کوونکے ، د ونډۍ بخرې وېشونکے .

**ونډيځے** :- (و + ن +ډ ے (د) زے)(پ تر ،اس ،ظر ، ج ـــ ځي) د ونډې کولو ځاے ، قصاب خانه

**ونږل** :- (و + ن + ګ/ژ+ل)(حمص) انتېوشے کول ، انتږوشے کول .

**ونسه** :- (وُ + ن / ني + سَ)(فعل) د ,,ونيسه،، لنډيز شکل دے . د ,,نيسل،، مصدر څخه د امر فعل .

**ونسے** :-(و + ن + ني + سے)(فعل) د ,,ونيسے،، لنډيز شکل .

**ونسئ** :- (و + ن + ني + س + ئ)(فعل) د نيسل مصدر نه . د جمع امر فعل . د شرطي يا تمنائي ماضي (د جمع حاضر) فعل .

**ونکه** :- (و + ن + کَ)(اس ،مو) يو قسم بوټے دے چې پلنې پاڼې لري پخولے هم شي او ډانډۍ ئې کچه هم خورے شي .

**ونکے** :- (و + ن + کے)(صف،مذ ،ج ـــ کي) هم عمر ،هم زولے ،هم عصر .

**ونکے** :-(و + ن + کے) د ,,ونهٔ کړے،، لنډيز شکل دے .

**ونګ ونګ** :- (و + ن + ګ + و + ن +ګ)(اس،صوت) د ماشوم د ژړا اواز .

**ونګره** :- (و + ن + ګ + ر)(اس،مو،ج ـــ رې) تالاب ، تالاؤ ، حوض .

**ونګه** :- (و+ن+ګَ)(اس،و،ج ـــ ګې) شکل ، صورت ، هېئت .

**ونګئ** :- (و + ن + ګ + ئ)(اس،مو) وره وُنه .

**ونګئ** :- (و + ن + ګ + ئ)(اس،مو) سپوږمۍ . د سپوږمۍ رڼا .

**ونيسـم** :- (و + نـي + س + م)(فعـل) د ,,نيسـل،، مصـدر څخـه د شـرطي يـا تمنائي ماضي (واحد متکلم) فعل .

**ونيسو** :- (و + ني ، سو)(فعل) د ,,نيسل،، مصدر څخه د شرطي يا تمنائي ماضي (د جمع متکلم) فعل .

**ونيسي** :- (و + ني + سي)(فعل) د ,,نيسل،، مصدر څخه د جمع امر فعل .

**ونيسے** :- (و + ني + سے)(فعل) د ,,نيسل،، مصدر څخه د شرطي يا تنائي ماضر (واحد حاضر) فعل .

**ونيسهٔ** :- (و + نـي + سهٔ)(فعـل) د ,,نيسـل،، مصدر څخه د ماضي فعـل ، ونيوهٔ .

**ونيسه** :- (و+ني+سَ)(فعل) د ,,نيسل،، مصدر څخه د امر فعل .

**ـــ ونه** :- (ـــ وو + نَ)(لاحقه) د جمعې لاحقه ده . لکه : کورونه ، ګلونه

**ونه شوم** :-

**ـــ شو** :- (جمله) زما نه پوره نهٔ شوه . زهٔ پاتې راغلم . (دغه شان د ,,ونه،، لفظ نورو فعلونو سره هم راځي) .

**ونه** :- (و + نَ)(اس،مو،ج ـــ نې) قد ،اوچت والے،قدقامت ، اونه .

**ونه** :- (و+نَ)(اس،مو،ج ـــ نې) درخته ، درخت ، اونه ، بوټے .

**ونې** :- (و + نې) د ,,ونه ،، جمع ده ـ د ,,ونه ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي ـ لکه : د ونې نه مندرے سړے ـ
**ونې** :- (و+نې) د ,,ونه ،، جمع ده ـ د ,,ونه ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي ـ لکه : د ونې سورے ـ
**ونه ییځ** :- (و + نَ + یي + (د) ز )(و ـــ ونه ئیز) ـ
**ونه ئیز** :-(و + ن + ئي + ز)(پ تر ،صف،مذ ،مو ـــ ه) ونې (درختې) سره تعلق لرونکې ونې ته منسوب ـ
**وني وال** :- (و+ نې + وا + ل)(و ـــ ونه ئیز) ـ
**ونیله** :- (و + نې + لَ)(اس ،مو،ج ـــ لې) یو زیړ رنګې بوټے چې وړې وړې ځانګې لري ـ
**وڼ** :- (و + ڼ)(اس ،مذ ،ج ــــــ ونه) بوڼ ، هغه نرے پړے چې کتهونه پرې بهولے شي ـ هند ـــ واڼ) ـ
**وښا** :- (و + ښا )(اس،مو) ښکار ـ
**وښا**:- (و + ښا )(اس،مو) ښکار ، شکار ، خکار ، صید ـ
**ـــــ کول** :- ښکار کول ، خکار کول ـ
**وڼڅے** :- (و + ن + ړ + (ت) سي )(اس،مذ) هغه بخښنه یا امداد کوم چې د ناوې د خپل خپلوانو د طرفه کال په کال ناوې کولے شي ـ
**وڼکه** :- (و + ڼ + که )(اس،مو،ج ـــــ کې) د وړئ ځخه جوړ شوې ، حاشیه ـ
**وڼے** :- (و + ڼے )(اس،مذ ،ج ـــ ړي) منداهو ـ
**وڼیا** :- (و + ڼ + یا )(هـ ،اس،جم) وړی،د مختلفو دالونو ځخه جوړ شوي غونډاري ـ چې پخولے شي ـ (هـ ـــ وړیاں، واحد : وړي) ـ
**وڼ یوڅے** :- (و + ڼ + یو + سے )(اس،مذ ،ج ـــ ځي) د کاریز اوبهٔ ، چې په حوض کښې د جمع کېدلو نه بغېر ، په زمکه کښې رواني وي ـ
**وڼے** :- (و + ڼے )(اس،مذ ،ج ـــ ڼي) ښکاري ، ښکار کوونکے ـ
**وو** :- (وو )(اس،مو،ج ـــ ګانې) هوا ، باد ، لکه : وو الوزي ـ
**ـــــ جن** :-(ـــ ج + ن )(پ تر ، صف،مذ ،مو ـــ ه) باد واله ، بادي ،باد (ناروغتیا) ـ
**وو** :- (وو )(فعل) ناقص فعل ، موجود وو ـ لکه : هغوي هلته وو ـ
**وو** :- (وو )(لاحقه) فعلي لاحقه ده ـ د بعیدې ماضي په جوړولو کښې پکارولے شي ـ لکه : هغه راغلے وو ـ
**وو** :- (وو )(لاحقه) فعلي لاحقه ده ـ د بعیدې ماضي په جوړولو کښې پکارولے شي ـ لکه : هغوي راغلي وو ـ
**وو** :- (وو ) د ,,هو ،، یا د ,,او ،، بدل شکل دے ـ
**وواتهٔ** :- (و + وا + ت )( فعل ) د ,, وتل ،، مصدر ځخه د ماضي مطلق ( د غایب ) فعل ـ
**وواېه** :- (و + وا + ئ )( فعل ) د ,, وئیل ،، مصدر ځخه د مطلقې ماضي فعل ـ ووئیل ـ
**وواهٔ** :- (و + وا + هـ )( فعل ) د ,, وهل ،، مصدر ځخه د مطلقې ماضي فعل ، وئې وهه ـ
**ووبدل** :- (وو + ب + د + ل )(مصدر) اودل ، وودل ، اوبدل ـ
**ووبدهٔ** :- (وو + ب + د )(حمص ) اودهٔ ، وودهٔ ، اوبدهٔ ـ
**ووتو** :- (و + و + تو )(فعل ) د ,,وتل ،، مصدر ځخه د ماضي مطلق فعل (جمع متکلم صیغه ) ـ
**ووټ** :- (وو + ټ )(انګ ،اس ،مذ ، ج ـــ ونه ) رائې ، خپله خوښه ځرګندونه ـ
**ـــــ اخیستل** :- د رائې کاغذ ،دچاپه حق کښې اچولے کېدل ـ (عموماً د جمعې په شکل کښې استعمالېږي ـ لکه : فلاني لس زره ووټونه واخیستل ) ـ
**ووټونه** :- (وو + ټو + نَ ) د ووټ جمع ده ـ د ووټو اچولے کېدل ، الیکشن ، انتخاب ـ لکه : نن ووټونه دي ـ
**ـــــ کېدل** :- د ووټونو اچولو په ذریعه انتخاب کېدل ـ
**ووځه** :-(وو + (د) زَ )(فعل ) د ,, وتل ،، مصدر ځخه د امر فعل خارج شهٔ ـ باهر (ته) لاړ شه ـ
**ووځئ** :- (وو + (د) ز + ئ )(فعل ) د ,, وتل ،، مصدر ځخه د جمع امر فعل ـ
**ووځي** :- (وو + (د) زي )(فعل ) د ,,وتل ،، مصدر ځخه د حال فعل (غایب صیغه )
**ووځے** :-(وو + (د) زے )(فعل ) د ,, وتل ،، مصدر ځخه د حال فعل (د واحد حاضر صیغه ) ـ
**ووځے** :- (وو + (د) زے )(فعل ) د ,, وتل ،، مصدر ځخه د تمنائي یا شرطي ماضي فعل (واحد حاضر صیغه ) ـ
**ووځم** :- (وو + (د) ز + م )(فعل ) د ,, وتل ،، مصدر ځخه د شرطي یا تمنائي ماضي فعل (واحد متکلم صیغه ) ـ
**ووځو** :- (وو + (ډ) زو )(فعل ) د ,, وتل ،، مصدر ځخه د حال فعل ـ (د جمع متکلم صیغه ) ـ
**ووچر** :-(وو + چ + ر )(انګ،اس،مذ ،ج ـــ ونه) په غاړه د اخستلو د ضمانت کاغذ ـ دستاویز ، تصدیق ـ
**وودل** :- (وو + د + ل )(مص ) اوبدل ، وو بدل ـ (ف : بافتن ) ـ
**وودہ** :- (وو + دَ )(صف،مو ) اوده شوې (ښځه) خوابیده ـ
**وودهٔ** :- (وو + د )(حمص ) د اودلو کار ، اوبدهٔ ـ
**وودهٔ** :- (وو + د )(صف،مذ ) اودهٔ شوے ، خفته ، په خوب کښې ـ
**ووډل** :-(وو + ډ + ل )(مص ) اوډل ، ترتیب ورکول ، مرتب کول ،اودل ، ودېدل ـ
**وور** :- (وو + ر )(و ـــ وار) د ,, وور ،، نور الفاظ د ,,وار ،، تر لاندې وګورئ) ـ
**وور** :- (وو + ر )(حمص) ورېدنه ، ورېدل ـ
**ـــــ تېرېدل** :- (و ـــــ وار تېرېدل) ـ
**ووربهٔ** :- (وو + ر + ګ/ژ)(و ـــ واربهٔ) ـ
**وورول** :- (وو + ر + ؤ + ل )(مص ) اورول ، ورول ـ
**وورنے** :- (وو + ر + نے )(و ـــ اورنے) ـ
**وورہ** :- (وو + رَ )(اس ، مو ، ج ـــ رې) وریځ ، وریز ـ
**وورہ** :- (وو + ر )(اس ، مو ، ج ـــ رې) د سترګې پرده ، د سترګې ګل ـ
**په سترګو ـــــ راتلل** :- په سترګو پرده راتلل ـ مجازاً : بې حیا کېدل ، بې شرمه کېدل ـ
**ووري** :-(وو + ري )(فعل ) د ,,ورېدل ،، مصدر ځخه د حال فعل ـ اوري ، ورېږي ـ
**وورئ** :-(وو + ر + ئ )(اس ، مو ) په خولهٔ کښې هغه سخته برخه چې غاښونه په کښې پیدا کېږي ـ
**وورے** :- (وو + رے )(اس،مو ) وریځې ـ د زور باران ـ
**وو رے** :- (وو + رے )(اس ، مذ ) رُورے ـ
**ووریا** :- (وو + ر + یا )(اس،مو ) د باران ورېدنه ، باران ـ
**وورېدل** :- (وو + رې + د + ل )(مص ) ورېدل ، اورېدل ـ
**وورېدنه** :- (وو + رې + د + نَ )(حمص ) ووربدنه ، اورېدنه ـ
**وورین** :- (وو + ري + ن ) واورو واله ـ ډېر زیات یخ ـ
**ووړ** :- (وو + ړ )(صف،مذ ) وړوکے ، خورد ـ مېده ـ (ددې جمع ,, واړهٔ ،، او مؤنث ,,وړه ،، راځي ـ چې جمع ئې ,,وړې ،، ده ) ـ
**ووړ** :- (وو + ړ ) د ووړې (اوړې) تصغیر دے ـ د سابقې په طور استعمالېږي ـ
**ـــــ ووړ کول** :- وړوکې وړوکې کول ، ټکړې ټکړې کول ـ
**ووړانګه** :- (وو + ړا + ن + ګَ )(اس،مو،ج ـــ ګې) باران ـ

**ـــــ دژمي** :- (ـــــ ج /ژ + مي) (پ تر، اس، مو) د ژمي د موسم باران چې عموماً په جنوري فروري کښې کېږي.

**ووړکے** :- (وو/وُو + ړ + کے) (اس، مذ، جـــ کي) د ,,ووړ،، تصغير دے۔ وړوکے، کچ، وړوکے هلک، هلک۔

**ووړګنے** :- (وو + ړ + ګ + نے) (پ تر، صف، اس، جـــ نې) د اوړي د موسم سره تعلق لرونکے، اوړي ته منسوب د اوړي فصل۔

**ووړول** :- (وو + ړ + ؤ + ل) (مص) اوړۀ کول، مېده کول، وړول۔

**ووړوونکے** :- (وو + ړ + وو+ن + کے) (پ تر، اس، فا، جـــ کي) اوړۀ کوونکے، مېده کوونکے۔

**ووړلئ** :- (وو + ړ + ل + ئ) د ووړلے،، تانيث دے۔

**ووړلے** :- (وو + ړ + لے) (صف، مذ، جـــ لي) د اوړي موسم سره تعلق لرونکے۔ اوړي موسم ته منسوب۔

**ووړنئ** :- (وو + ړ + ن + ئ) (وـــ ووړلئ)۔

**ووړنے** :- (وو + ړ + نے) (وـــ ووړلے)۔

**ووړۀ** :- (وو + ړ) (وـــ واړۀ)۔

**ـــــ زووړۀ** :- (ـــــ زو + ړ) (وـــ واړۀزاړۀ)۔

**ووړۀ** :- (وو+ړ) (اس، جم) اوړۀ، وړۀ (مېده کړي غنم يا جوار وغېره چې ډوډۍ تري پخولے شي) مېده کړے ځيز۔

**ـــــ کړے** :- (ـــــ ک + ړے) (پ تر، اس، مف، جـــ ړي) مېده کړے، پوډر کړے۔

**ووړي** :- (وو + ړي) د ,,ووړے،، جمع۔ د ,,ووړے،، بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي۔ لکه: د ووړي غرمه اود ژمي شپه يوه شان وي۔

**ووړے** :- (وو + ړے) (اس، مذ، جـــ ړي) اوړے، د ګرمۍ موسم، تابستان۔

**ـــــ ژمے** :- (ـــــ ژ، مے) (پ تر، اس، مذ) د اوړي او د ژمي موسمونه، مجازاً: کالو سر، ټول کا ل، شامدام۔

**ووړېدل** :- (وو + ړې + د + ل) (مص) اوړۀ کېدل، مېده کېدل، وړېدل۔

**ووړېدونکے** :- (وو+ړې+دو+ن+کے) (پ تر، اس، فا، جـــ کي) اوړۀ کېدونکے، مېده کېدونکے۔

**ووزم** :- (وو + ز + م) (وـــ ووځم)۔

**ووزو** :- (وو + زو) (وـــ ووځو)۔

**ووزۀ** :- (وو + زَ) (اس، مو، جـــ زي) بيزه، چېلۍ۔

**ووزي** :- (وو + زي) (فعل) (وـــ ووځي)۔

**ووزے** :- (وو+زے) (اس، مو، ج) د ,,ووزه،، جمع ده۔ بيزي، چېلۍ۔

**وورد** :- (وو+ګ/ژ + د) (صف، مذ، مو ــ ه) اوږد، طويل، وږد، دراز۔

**ووږده** :- (وو+ګ/ژ + دَ) (صف، مو، جـــ دې) د ,,ووږد،، تانيث دے۔

**ووږه** :- (وو + ګ/ژ) (اس، مو، جـــ ږې) اوږه، وږه، هوږه۔

**ووږے** :- (وو + ګے/ ژے) (صف، اس، جـــ ږي) ګرسنه، هغه چې ګېډه ئې خالي وي او خوراک غواړي۔

**ووږے** :- (وو + ګے/ ژے) (اس، مذ، جـــ ږي) اوګے، اوږے، د غلې وغېره يوه پېمانه۔

**ووږۍ** :- (وو + ګ /ژ + ئ) (اس، مو) د غاړې کالے، اوږۍ، اوګۍ۔

**ووسۍ** :- (وو + س + ئ) (اس، مو) اوسۍ، هوسۍ، اهو (ماده)۔

**ووښ** :- وو + خ / ش) (اس، مذ، جـــ ونه) د ښپلۍ شاتنے بند۔

**ووګد** :- (وو + ګ + د) (وـــ ووږد)۔

**ووګے** :- (وو + ګے) (وـــ ووږے)۔

**وول** :- (وو + ل) (وـــ حال)۔

**وولہ** :- (وو+لَ) (فعل) د ,,ويشتل،، مصدر څخه د امر فعل، ؤله، اوله۔

**ووم** :- (وو + م) (فعل) ناقص فعل دے۔ (د واحد متکلم صيغه)۔

**وومه** :- (وو + م) (وـــ ووم)۔

**وونډه** :- (وو + ن + ډَ) (اس، مو، جـــ ډې) د يو کلي، اولس اوښان چې يو کس ئې په غړۀ کښې څروي۔

**وونه** :- (وو + نَ) (اس، مو) د تورې يا د داسې قسم فلزي ځيز زلق، جوهر، آب۔

**وونئ** :- (وو + ن + ئ) (اس مو) د اوښ د پالان وړاندينے لرګے۔

**ؤ** :- (ؤ) (سابقه) د فعل سابقه ده۔ د ځينو فعلونو په جوړولو کښې پکارولے شي۔ لکه: وشۀ، وبه شي۔ وکړه۔

**ووها** :- (وو + ها) (اس، صوت) د غوا ړ غويانو ګرځولو، او په قلاره کېدلو اواز، هاؤ! هاؤ شه! (غالباً چې د ,,هاؤ،، مقلوب شکل دے۔

**ووے** :- (و + وے) (اس، مذ، جـــ وي) خبره، ويے، لوز، وعده، رمنه

**وويا** :- (وو + يا) (اس، مو، جـــ ووېے) ها، هاګۍ، اګۍ۔

**ووت** :- (وو /وُ+ؤ + ت) (فعل) د ,,وتل،، مصدر څخه د مطلقې ماضي فعل (واحد غايب مذکر صيغه)۔

**ووتـه** :- (وو /وُ + وَ + تَ) (فعل) د ,,وتل،، مصدر څخه د ماضي مطلق فعل (مؤنث واحد غائب صيغه)۔

**ووتے** :- (وو / و + وَ + تے) (فعل) د ,,وتل،، مصدر څخه د مطلقې ماضي فعل (د واحد حاضر صيغه)۔

**ووتم** :- (وو / و + و + ت + مْ)۔

**ووتمه** :- (ـــــ مَ) (فعل) د ,,وتل،، مصدر څخه د مطلقې ماضي فعل (د واحد متکلم صيغه)۔

**ووتـئ** :- (وو / و + و + ت + ئ) (فعل) د ,,وتل،، مصدر څخه د مطلقې ماضي فعل (د جمع حاضر صيغه)۔

**ووـــ** :- (وو /وُـــ) د فعل سابقه ده د ځينو فعلونو د جوړولو د پاره په سرکښې لګولے شي۔ لکه: وو واهۀ۔ (عموماً ,,وُ،، ليکلې شي، لکه: وواهۀ)۔

**ووتو** :- (وو / و + و + تو) (فعل) د ,,وتل،، مصدر څخه د مطلقې ماضي فعل (د جمع متکلم صيغه)۔

**وه** :- (وَ) (فعل) ناقص فعل دے۔ د واحد غائب مؤنث صيغه۔ لکه: هغه هلته نۀ وه۔

**وه** :- (و + (ه)) (فعل) ناقص فعل دے۔ د ,,وے،، په ځاے استعمالېږي۔

**وه** :- (و+ه) (حرف) د خوشحالۍ او دانبساط تورے دے۔ د شاباسي تورے دے۔ دتعجب او حېرت تورے دے۔

**وه** :- (و + هَ) (اس، مذ) هوښيار، عاقل۔

**وۀ** :- (ؤ) (فعل) ناقص فعل دے۔ (د واحد غائب مذکر صيغه) لکه: هغه ژوندے وۀ۔ (ځيني وخت ,,ؤ،، او اکثره ,,وو،، ليکلے شي)۔

**وها** :- (و + ها) (اس، مذ) يو قسم بوټے دے۔ غونډ شان وي۔ نرۍ نرۍ څانګې لري۔ خو پاڼې نۀ لري۔

**وهـاب** :- (و + هـا + ب) (ع، صف) ډېر ورکوونکے، ډېره عطا کوونکے، د خداے پاک يو صفاتي نوم دے۔ د نارينه ؤ په نومونو کښې راځي۔

**وهاب کور** :- (و + ها + ب + کو + ر) (اس، مع) د حليم زئيو څانګه ده۔ مهمند دي

**وهابي** :- (و + ها + بي) (صف، اس، مذ، جـــ ان) هغه سرے چې د شيخ محمد بن عبدالوهاب منونکے وي۔ د شيخ محمد بن عبدالوهاب مخالفينو د هغۀ پېروکار بې لارې او ګمراه ګڼل۔ ځکه: بې لارې، ګمراه۔ (اصلاً دا معنې درستې نۀ دي۔

**وهاج** :- (و + ها ، ج) (ع ، صف ، مذ ، مو ـــ ه) زلقېدونکی ، زلق کوونکی ـ پرقېدونکی ـ

**وهار** :- (و+ها+ر) (اس ، مذ) نرے نرے باران ، پونه ، ترشح ـ

**ـــــ کول** :- نرے شان ترشح کول ، د کوزې وغېره څخه لږې لږې شان اوبهٔ راڅڅول ـ د اوبو پونه کول ـ

**وهارېدل** :- (و +ها + رې + د + ل) (مص) وهار کېدل ، پونه ورېدل ، د کوزې وغېره لوښي نه نرۍ نرۍ اوبهٔ راڅخه ول ـ د پونې په شان اوبهٔ راتویول ـ

**وهب** :- (و+هـ+ ب) (ع ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) عطا ، ورکړه ، وربخښنه ـ

**وهبي** :- (و + هـ + بي) (ع تر ، صف) ورکړے شوے ، عطا کړے شوے ـ (ور) بخښلے شوے ـ

**وهپ** :- (و + هـ + پ) (انګ ،اس ، مذ) په پارلیمنټ وغېره کښې د کومې پارټۍ داسې عهده دار ، چې د جماعت ممبرانو سره تعلق ساتي ـ په پارلیمان کښې د ګوند د غړو یو څاروونکے ـ

**وهل** :- (و + هـ + ل) هضمول ، اخیستل او بیا نهٔ ورکول ، زر روپۍ ئې رانه ووهلې ـ (بازاري) بد فعلي کول ، بدکاري کول ـ (کُس ، کنه سره) ـ

**وهل** :- (و + هـ + ل) (مص) لاس یا لرګي وغېره سره ګذار ورکول ټکول ، ډبول ـ خوړل ، لکه : پولاؤ وهل ـ غړول ، لکه : رباب وهل ـ

**بېخ ـــــ** :- په بېخ کښې ګذار ورکول ، د وېخه نړول ـ بېخ بنیاد اېستل ، سخت نقصان رسول ـ

**تړپکې ـــــ** :- (ت + ړ + پ + کې ـــ) ټوپونه وهل ، ارغوچکې وهل ، د حلال شوي څیز په شان اوچتېدل راخلاصېدل ، شتېدل ـ

**تورې ـــــ** :- تورې چلول ، تورو سره جنګ کول ـ په جنګ کښې مېړانه او بهادري ښودل ـ

**ټسکې ـــــ** :- لکه د ماشوم بنده بنده ژړا ـ

**ټوپ ـــــ** :- دانګل ، جست کول ، د کوم څیز کندې وغېره نه په ټوپ پورې وتل ـ

**سر ـــــ** :- راټوکېدل ، راښکاره کېدل ـ نیښ وهل ـ

**په ځټ کښې ـــــ** :- په روان کار کښې اړیکه اچول ، روان کار بندول ـ

**ـــ ټکول** :- (پ تر ، اس ، جم) د دواړو لفظونو یو شان معنې دي ـ دوېم لفظ د تاکید دپاره راځي ـ ضربونه رسونه ، ډبونه ـ

**ـــــ ټکول کول** :- یو بل وهل ، په یو بل ګذارونه کول ـ یو بل ډبول ، جنګ کول ، خپېړې لګول ـ

**پټکے ـــــ** :- پټکے د سر نه تاوؤل ـ

**دیوال ـــــ** :- دیوال خېژول ، دیوال تعمیر ول ـ

**ډول ـــــ** :- (ډو + ل ـــ) ډول غړول ، دولکے (وړوکے ډول) غړول ـ نغاره کول

**غر ـــ وهل** :- (غ + ر ـــ) منډه کول ، تښتېدل ـ

**لار ـــ دچا** :- د چا په کار کښې خنډ اچول ـ

**لار ـــــ** :- مزل کول ، په لاړ تلل ، سفر کول ـ

**مال ـــــ** :- مال ، دولت په ناجائزه طریقه اخیستل ـ

**منډه ـــــ** :- په منډه تلل ، زغل کول ، زغلېدل ، تښتېدل ـ

**ناره ـــــ** :- چغه وهل ـ

**نارې ـــــ** :- اواز کول ، چاته غږ کول ، په چغه رابلل ـ

**نعرې ـــــ** :- اواز کول ، رابلل ـ

**چرس / چیلم ـــــ** :- څښکل ، تماکو یا د چرسو لوګے راښکل ـ

**لاس / ګوتې ـــــ** :- دخل ورکول ، دخل اندازي کول ـ

**ونه ـــــ** :- ونه پرې کول ـ

**یخ / یخنۍ ـــــ** :- زکام کېدل ، تود سوړ کېدل ـ

**ـــ کېدل** :- وهلے کېدل ، ګذارونه خوړل ـ

**وهلاے** :- (و + هـ + ل + لا + ے) (اس ،مف) وهلے شوے ، د وهل مصدر څخه د فعل خبر ، وهلے ـ لکه : وهلاے کېږي ـ

**وهلو** :- (و + هـ + لو) (فعل) د ,,وهل ،، مصدر څخه د استمراري ماضي فعل ، (جمع متکلم ضمیر سره) ـ

**وهلئ** :-(و + هـ + ل + ئ) (فعل) د وهل مصدر څخه د ماضي استمراري فعل (جمع ماضر ضمیر) ـ

**وهلے** :-(و + هـ + ل + لے) (اس ، مف ، مذ ، ج ـــ لي) وهلے شوے ، ټکولے شوے ، ډبولے شوے ـ لیکلے شوے ، په لیک کښې راغلے ـ

**ـــ قلم** :- (ـــ ق + ل + م) مجازاً : د قسمت لیک ـ

**وهلم** :- (و + هـ + ل + م) (فعل) د ,,وهل ،، مصدر څخه د استمراري ماضي فعل ـ (واحد متکلم صیغه) ـ

**وهلندئ** :- (و + هـ + ل + ن +د+ئ) (صف ، مو) د ,,وهلندے ،، تانیث دے ـ

**وهلندے** :- (و + هـ + ل + ن + د ے) (صف ، مذ ، ج ـــ دي) پېچ در پېچ ، تاؤ راتاؤ

**ـــ توب** :- (ـــــ تو + ب) (پ تر ، اس ، مذ) تاؤ راتاؤ والے ـ پېچ درپېچ حالت ـ

**وهله** :- (و + هـ + لَ) (اس ، مو ، ج ـــ لې) حمله ، چپاؤ ـ

**وهله** :- (و + هـ + لَ) (فعل) د ,,وهل ،، مصدر څخه د ماضي بعید واحد (مؤنث ضمیر) فعل ـ لکه : هغهٔ خور وهله ـ

**وهم** :- (و + هـ + م) (ع ،اس ، مذ ، ج ـ ونه / اوهام) ګمان ، احتمال ، شک ، د مغزو هغه قوت کوم چې فاسد خیالات راپېدا کوي ـ واهمه ـ

**ـــ کول** :- ګمان کول ، غلط او فاسد خیال په زړهٔ کښې راوستل ـ

**ـــ لرل** :- ګمان لرل ، احتمال لرل ـ

**ـــ ګمان** :- (ـــ ګو + ما + ن) (پ تر ، اس ، مذ) د دواړو لفظونو تقریباً یو شان معنې دي ـ دوېم لفظ د تاکید دپاره راوستے شي ـ

**وهمي** :- (و + هـ + مي) (صف ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) وهم کوونکے ، ګمان کوونکے ، غلط او فاسد خیال په زړهٔ کښې راوستونکے ، شک کوونکے ـ

**ـــ کېدل** :- په وهمونو کښې اخته کېدل ، په هره خبره کښې شک کول ـ

**وهمېدل** :- (و + هـ + مې + د + ل) (و ـــ وهمي کېدل) ـ

**وهندے** :- (و + هـ + ن + د ے) (پ تر ، صف ، ج ـــ دي) وهونکے ، مقبل ، د خوښې ، په زړهٔ پورې ـ

**وهنه** :- (و + هـ + نَ) د ,,وهل ،، مصدر څخه حاصل مصدر ـ د ,,وهل ،، په معنو کښې راځي ـ

**ـــ کول** :- وهل ، په کوم څیز کښې ناجائزه برخه قبضه کول ـ

**وه، وه** :- (و+ه + و + ه) (حرف) د شاباسي کلمه یا کلمات دي ـ افرین ، ډېر ښهٔ ، شاباسې ، شاباش ، د خوشحالۍ او د خوښې د اظهار کلمه ـ

**وهه** :- (و + هَ) (فعل) د ,,وهل ،، مصدر نه د امر فعل ،ګذار پرې کوه ، ډبوه ، طنزاً : خوره ـ په ناجائزه قبضه کوه ـ

**ـــ او راکاږه** :- (ـــ او ، را + کا + ږَ) (جمله) خوره او ځان ته رانزدې کوه ـ مجازاً : مفت خورا کونه کوه ـ

**وهوبله** :- (و + ه + وي + لَ) (و ـــ واوېلا) ـ

**وهیر** :-(و + هي + ر) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) نوحه ، په مړي ژړا ، ویر ، فریاد ، ژړا ، زاري (هند ـــ ویر) ـ

**ـــ کول** :- ژړا فریاد کول ، زاري کول ،نوحه وئیل ،په مړي ژړا کول ـ

**ـــ غاړي** :- (ـــ غا + ړي) (پ تر ، اس ، ج ـــ ړي) نوحه ویونکے ، نوحه ګر

، ژړا کوونکے ، زاري کوونکے.

**وهېر** :- (و + هې + ر) هېر ، فراموش شوے.

**وهېل** :-(و + هې + ل)(اس ،مذ ،ج ـــونه) د خزان موسم ، منے.

**وئ** :- (و + ئ)(فعل) ناقص فعل دے .د جمع حاضر دپاره راځي . تاسو هلته نۀ وئ.

**وئ** :- (و + ئ)(حرف) د افسوس ، د درد او د حېرت د ښکاره کولو کلمه ده. لکه : وئ ! دا څۀ وشو. وئ ! خوږ دې کړم.

**ـــوئ** :- (ـــو + ئ)(حرف) د افسوس ، د حېرت او د خوږ د ښکاره کولو تورے دے.

**ـــوئ نو** ! :- ارمان دے چې----

**وي** :- (وي)(فعلي لاحقه) د شرطي او شکيه ماضي فعلونو په جوړولو کښې پکارولے شي.لکه : که هغه راغلے وي. يا .هغه به راغلے وي.

**ـــ که نۀ وي** :- (جمله) په کوم کار کښې غالب گمان څرگندولو په موقع وئيلے شي.

**وې** :- (وې)(فعل) د بعيدې ماضي د فعل برخه . د جمع غائب مؤنث او د واحد حاضر دپاره راځي. لکه : ټولې ښځې راغلې وې.يا تۀ راغلې وې.

**وے** :- (و+ ے) د تمنا او خواهش د ښکاره کولو دپاره استعمالېږي . لکه : کاش که داسې وے.

د ځواني بهار څۀ ښۀ دے،دربغه دربغه
دا بهار که همېشه په دنيا وے (خوشحال)

**وې** :- (وې) د ,,وې ،، لنډ شکل دے. لکه وې ليدۀ ، وئې ليدۀ.

**وئېـ** :- (وُ + يې ـ) په دې ,,ئې ،، د واحد او جمع غائب ضمير دے .په هغو فعلونو کښې راځي چې د ,,و ،، څخه شورو کېږي .لکه : وئې ليدلم ، وئې ويشتم.

**وے** :- (وے)(حرف ندا) چاته اواز کولو يا ځان ته متوجه کولو دپاره استعمالېږي.لکه : مه کوه وے.

**وے** :- (وے)(انگ ، اس ، مذ) لار. طور ، طريقه ، دستور.

**وے** :- (وے)(فعل) د ,,وئيل مصدر څخه د ماضي فعل.د استمرار مفهوم لري. لکه : تاوے ، ما وے.

**وے** :- (وے) ناقص فعل دے ، د جمع مؤنث دپاره راځي .لکه : دا ښځې هلته نۀ وے.

**وے** :- (وے)(لاحقه) د فعلونو لاحقه ده .(د واحد حاضر صيغه) .نوري داسې لاحقې دادي.وو، وۀ ، وے ، وئ، وم ، وُو.

**وے** :- (وے)(فعل) د ماضي استمراري فعل.(هغه به) وے ، ے به ئې.

**ويار** :- (و + يا + ر)(اس ،مذ ،ج ـــونه) عېب ، عېب جوئي ، عېب لټونه . بدگوئي ، حسد ، رخه ، اروړ.

**ويار** :- (و + يا + ر)(و ـــوير).

**ويار** :- (و + يا + ر)(اس ، مذ ، ج ـــونه)(و ـــوياړ).

**ـــ کول** :- (و ـــوياړ کول).

**ويار برخه** :- (و + يا +ر + ب + ر + خَ)(پ تر ، اس ، مو) هغه رقم کوم چې پردي لښکر له د پستنه تللو په بدله کښې ورکولے شي.نعل بها.

**ويارۀ** :- (و + يا + ر)(و ـــوارۀ).

**وياړ** :- (و + يا + ړ)(اس،مذ ،ج ـــونه) عېب جوئي ، عېب گوئي ،بد وئيل ، حسد ، رخه ، لمسون ، لمسه کونه.

**ـــ کول** :- بد وئيل (د چا) عېب ښکاره کول ، حسد کول ، رخه کول.

**وياړ** :- (و + يا +ړ)(اس،مذ ،ج ـــونه) فخر ، لويې ، افتخار.

**ـــجن** :- (ـــج + ن)(پ تر ،صف،مذ ، مو ـــه) فخر کوونکے ، ناز کوونکے ، لوئي کوونکے.

**ـــ کول** :- فخر کول ، افتخار کول ، لوئي کول.

**وياړل** :- (و + يا + ړ + ل)(مص)(و ـــوياړ کول).

**وياړن** :-(و + يا + ړ + ن)(و ـــوياړجن).

**وياړنه** :- (و + يا + ړ + نَ)(حمص) فخر کونه ، ناز کونه ، افتخار ، فخر.

**وياړه** :- (و + يا + ړَ)(اس ، مو ، ج ـــړې)(و ـــوياړنه).

**ـــ کول** :- (و ـــوياړ کول).

**وياړه** :- (و + يا + ړَ)(اس ، مو ، ج ـــړې) حلقه ، دائره.

**وياړو** :- (و + يا + ړو)(پ تر ، اس ، فا ، مذ) وياړ کوونکے ، فخر کوونکے.

**وياړلے** :- (و + يا + ړ + لے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــلي) هغه چې فخر پرې شوے وي.نازېده.

**وياړو** :- (و + يا + ړو)(فعل) د ,,وياړل ،، مصدر څخه د حال فعل (جمع متکلم صيغه).

**وياړه** :- (و + يا + ړ)(اس ، مو ، ج ـــړې) جونگړه ، کوډله .اول ئې وياړه زيروه بيا مېړه ځير وه (متل).

**وياړے** :- (و + يا + ړے)(فعل) د ,,وياړل ،، مصدر څخه د حال فعل (واحد حاضر صيغه).تۀ فخر کوے.

**وياړئ** :- (و + يا + ړ + ئ)(فعل) د ,,وياړل ،، مصدر څخه د حال فعل (د جمع مخاطب صيغه).

**وياړي** :- (و + يا + ړي)(فعل) د ,,وياړل ،، مصدر څخه د حال فعل (د غائب صيغه).

**وياړم** :- (و + يا + ړ + م)(فعل) د ,,وياړل ،، مصدر څخه د حال فعل (د جمع متکلم صيغه).

**وياسته** :- (و + يا + س + ت)(اس ، مذ ، ج ـــتې) بياسته ، غټ پړے ، د ښۀ خدا ے په وياسته لاس لگوي.(مخزن).

**ويال** :- (و + يا + ل)(و ـــويل).

**ويال** :- (و + يا + ل)(صف ، مذ ، مو ـــه) تازه ، شگفته.ازاده .

**ـــ توب** :- (ـــتو + ب)(و ـــويال تيا).

**ـــ تيا** :- (ـــت + يا)(پ تر ، اس ، مذ) تازه والے ، شگفتگي.

**وېلاستې** :- (و + لا+ سې + تې)(انگ ، اس ، مو) رفتار ، تېز رفتاري ، گړندتوب ، چابکتيا.

**ويالړبدل** :- (و+يا+ل+ ړ ې + د + ل)(مص) حسابېدل ، مرادېدل.

**ويالړينه** :- (و + يا + ل + ړي + نَ)(فعل حال) ويالړېږي.

يو بېچگون دے بل بې عېبه بې نقصان دے .ولکه دا دواړه سلبې دي او د تنزيهي ئې ويالړينه (مخزن).

**وياله** :- (و + يا + لَ)(صف ،مو،ج ـــلې) د ,,ويال ،، تانيث دے.

**وياله** :- (و + يا + لَ)(اس ،مو ، ج ـــلې) وله ، لښتے ، ندی.

**ويان** :- (و + يا + ن)(اس ، مذ) ويونکے ، ناطق ، گوينده.

**وياند** :- (و + يا + ن + د)(اس ، فا ، مذ ، مو ـــه) ويونکے ، وېنا کوونکے ، گويا ، تقرير کوونکے.

**ويايل** :- (و + يا + ي + ل)(و ـــوئيل).

**ويائي** :- (و + يا + ئي)(فعل) د ,,وئيل ،، مصدر څخه د حال فعل دے .(د غائب صيغه) وائي.

**ويايئ** :- (و + يا + ي + ئ)(فعل) د ,,وئيل ،، مصدر څخه د حال فعل (د جمع مخاطب صيغه) وايئ ، يايئ.

**ويايو** :- (و + يا + يو)(فعل) د ,,ويل ،، مصدر څخه حال فعل (جمع متکلم

صیغه) وایو ، یایو.
**ویایم** :- (و + یا + ي + م)(فعل) د ,,وئیل،، مصدر څخه د حال فعل (د واحد متکلم صیغه) وایم ، یایم.
**ویایې** :-(و + یا + یې).
**ویائې** :- (و + یا + ئې)(فعل) د ,,وئیل،، مصدر څخه د حال فعل (واحد حاضر صیغه) وائې/ یې.
**ویبه** :- (وي + بَ)(فعل) د مستقبل فعل دے.په مستقبل کښې د کوم کار د کېدو په حقله شک یا لاپرواهي څرګندولو دپاره محاورتاً وئیلے شي.
**ویبه** :- (وي + بَ)(اس ، جم) اوبۀ ، آب.
**ـــــ په ډانګ بېلول** :- ناشونے کار کول. مجازاً : نزدې خپلوان ځبله د جدا کولو کوښښ کول. ویبه په ډانګ نۀ بیلېږي (متل).
**ـــــ غلبېلول** :- ناشونے کار کول ، ناممکن کار کول.
**ویت** :- (وي + ت)(صف ، مذ ، مو ـــــه) پرانستے ، واز.هغه چې خولۀ ئې هر وخت وازه وي.مجازاً : بې حیا یا ډېرې خبرې کوونکے.
**ـــــ خولے** :- (ـــــ خُ + لے)(پ تر ، صف ، ج ـــ لي) هغه سړے چې خولۀ ئې هر وخت وازه وي. مجازاً : بې حیا ،بې شرم ،ډېرې خبرې کوونکے ، کړتونے.
**ـــــ سترګے** :- (ـــــ س + ت + ر + ګے)(پ تر ، صف) مجازاً : بې حیا ، بې شرمه ، بدلحاظه.
**ـــــ والے** :- (ـــــ وا + لے)(پ تر ، اس ، مذ) کشادګي ، ارت والے ، پرانست والے.
**ـــــ کتارے** :-(ـــــ ک + تا + رے)(پ تر ، صف ، مذ ، ج ـــ ري) ډېرې خبرې کوونکے ، کړتونے ، قړتونے . نخرې کوونکے ، په نخرو نخرو کار کوونکے
**ویتک** :-(و ي + ت + ک)(و ـــ ویتکے).
**ویتکۍ** :- (وي+ت+ک+ۍ)(اس ، مو) د ,,ویتکے،، تانیث دے.
**ویتکے** :- (وي + ت + کے)(اس ، مذ ، ج ـــ کي) ډېرې خبرې کوونکے ، قړتونے ، قړتو کړتونو. په کار کښې نخرې کوونکے.
**ویتېدل** :- (وي + تې + د + ل)(مص) وازېدل ، پرانستے کېدل ، وېر کېدل.
**ویتې** :-(وي + تې)(مص) قړتې ، نخرې ، خوشې خبرې.
**ـــــ کول** :- ډېرې خبرې کول ، قړتې کول.کړتې کول ، خوشې خبرې کول ، په کار کښې نخرې کول.
**ویتول** :- (وي+ت+ؤ + ل)(مص) وازول ، پرانستل ، کولاؤل ، وېرول.
**ویجاړ** :- (وي + جا + ړ)(صف ، مذ ، مو ـــــه) اوجاړ ، ویران ، بنجر ، وران شوے (د اباد ضد).
**وېټر** :- (وې+ټ+ر)(انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د هوټل هغه ملازم چې د ګاهکانو خدمت کوي.اډر ترې اخلي.د خوراک څیزونه ورته ړدي.بِل ورله راوړي.او داسې نور.
**وېټریس** :- (وې+ټ+ر+س)(اس،مو،ج ـــ سې) د ,,وېټر،، تانیث دے.
**وېټرنري** :- (وې + ټ+ ر + ن + ري)(و ـــ ویټرنري).
**ویټرنري** :- (و + ټ + ر+ن+ري)(انګ ، صف) د ځناورو طب ، بیکاري.
**ـــــ ډاکټر** :- (ـــ ډا+ک+ټ + ر)(انګ ، تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ان)د ځناورو ډاکټر ، د حیواناتو ډاکټر.
**وېټنګ روم** :- (وې + ټ + ن + ګ + رو+ م)(انګ ، تر ، اس ، مذ)د انتظار کولو کوټه ، انتظار ګاه ، د انتظار خونه.
**ویټو** :- (وي + ټو)(انګ ، اس ، مذ) د کوم تجویز وغیره د رَدَ کولو حق. حق استرداد ، رد کونه و ګرځونه ، د منع کولو واک.
**ـــــ کول** :- خپل حق د استرداد استعمال.د نورو تجویز رد کول ، رد کول ، منع کول.
**ویجاړ** :- (وي + جا + ړ) غېر اباد ، شاړ.
**ـــــ توب** :- (ـــــ تو + ب)(و ـــــ ویجاړ والے).
**ـــــ تیا** :- (ـــــ ت + یا)(و ـــــ ویجاړ والے).
**ـــــ والے** :- (ـــــ وا +لے) د ویجاړېدلو هېئت ، غېر ابادي ، بنجر والے ، د ابادۍ لایق نۀ پاتې کېدنه.
**ویجاړول** :- (وي + جا + ړ + ؤ + ل)(مص) اوجاړول ، غېر اباده کول ، بنجرول. د ابادۍ لایق نۀ پرېښودل.
**ویجاړه** :- (وي + جا + ړَ)(اس ، مو ، ج ـــ ړې) د ,,ویجاړ،، تانیث دے.
**ویجاړونه** :- (وي + جا + ړ + ؤ + نَ)(حمص) غېر اباد کونه ، بنجرونه ، د استوګنې قابل نه پرېښودنه.
**ویجاړېدل** :- (وي + جا + ړې + د + ل)(مص) اوجاړېدل ، غېر ابادېدل ، ویران کېدل ، د ابادۍ قابل نۀ پاتې کېدل.
**ویجاړېدنه** :- (وي +جا+ ړې + د + نَ)(حمص) اوجاړېدنه ، ویجاړ کېدنه ، غېر اباد کېدنه ، بنجرېدنه.
**ویجاړېدۀ** :- (وي + جا + ړې + د)(و ـــــ ویجاړېدنه).
**ویجي ټېرین** :- (و+جي+ټ+ري+ن)(انګ،تر،صف،مذ،مو ـــه) هغه سړے چې صرف سبزي خوري.(غوښه وغېره نۀ خوري).
**وېخ** :- (وې + خ)(اس ، مذ ، ج ـــــ ونه) بېخ ، مونړ ، بنیاد ،د لوښې وغېره لاتدیني حصه ، تل ، لوښې.
**ـــــ اېستل / اباسل / اوښکل** :- بېخ ایستل ، بنیاد اېستل.جړه اېستل. بالکل تباه کول ، بنستې اوښکل.
**ـــــ دې ووزه** :- (جمله) د ښېرې په طور استعمالېږي.بالکل ورک شې ، تباه و برباد شې.
**ـــــ وتل** :- بنیاد وتل ، جړه اوښکلے کېدل ، بېخي تباه کېدل ، نیش کېدل. ډېر زیات نقصان رسېدل.
**وېخه** :-(وې + خَ) د ,,وېخ،، بدل شکل دے چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.
**له ـــــ وتل** :- بېخي وتل چې ویخ ئې هم پاتې نشي، د وېخ سره وتل.
**له ـــــ وېستل / اباسل** :- د بېخ سره اوباسل ، داسې اوباسل چې وېخ ئې هم پاتې نشي.
**ویخول** :- (وي + خ + ؤ + ل)(و ـــــ ویښول).
**ویخېدل** :- (وي + خې + د + ل)(و ـــــ ویښېدل).
**وېد** :- (وې + د)(هـ ، اس ، مع ، مذ ، ج ـــــ ونه) د هندوانو مقدس کتاب ، دا په شمېر کښې څلور دي.
**وېد** :- (وې + د)(هـ ، اس ، مذ ، ج ـــ ان) د هندي طب ماهر ، علاج کوونکے ، ښد.
**ویدک** :- (وې+د + ک)(صف) د ویدولو علم ، د هندي طب علم.
**ویدول** :- (وي + د + ؤ + ل)(مص) اودۀ کول ، په خوب کول.
**ویدۀ** :- (وي + د)(اس،مف) اودۀ ، اودۀ شوے ، په خوب کښې.
**ـــــ کول** :- اودۀ کول ، (مذکر) خوب وروستل.
**ـــــ کېدل** :- اودۀ کېدل ، په خوب کښې کېدل.
**ویده** :- (وي + دَ)(اس،مف ،مو ، ج ـــ دې) د ,,ویده،، تانیث دے.
**ـــــ کول** :- اودۀ کول (مؤنث).
**ـــــ کېدل** :- اودۀ کېدل ، په خوب کښې کېدل.
**پښه ـــــ کېدل** :- پښه بې حسه کېدل.
**وېدي** :- (وې + دي)(صف) د ,,وېد،، یا ویدونو سره متعلق د وید یا ویدونو

ته منسوب.

**ويدې** :- (وي + دې)(اس ، مو ، ج)د ,,ويده ،، (مو) جمع ده.

**ويدېدل** :- (وي +دې + د + ل)(مص) اودۀ کېدل ، ويدۀ کېدل ، په خوب کښې کېدل.

**وېر** :- (وې + ر)(صف ، مذ ، مو ــ ه) هېر ، فراموش.

**وير** :- (وي + ر)(اس ، مذ ، ج ــ ونه) نوحه ، په مړي د غم ژړا او وېنا ـ ماتم.

**ـــ بانړې** :- (ـــ با + ن + ړې)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ــ ړي) ماتم زده ، ماتم وهلے ، ماتم زپلے.

**ـــ جن** :- (ـــ ج + ن)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ــ ه) وير کوونکے ، ماتم کوونکے ، نوحه کوونکے ، نوحه گر ـ د ماتم وړ ، د افسوس وړ ، لکه : ويرجنه پېښه

**ـــ ژړلے** :- (پ تر ، صف،ج ــ لي) ماتم وهلے ، ماتم زده ، هغه چې چاته د مړي (يا بل کوم لوے غم) پېښ شوے وي.

**ـــ ژړنے** :- (ـــ ج + ړ + نے)(پ تر ، اس ،مذ ، ج ــ ني) د وير ژړا کوونکے ، نوحه گر ، ماتم زده ، ماتم وهلے.

**ـــ کول** :- ماتم کول،نوحه کول،په مړي ژړا او د هغۀ ستائنې وئيل.

**ـــ کېدل** :- ماتم کېدل ، په مړي ژړا کېدل.

**ـــ گډے** :- (ـــ گ + ډے)(پ تر ، صف ، مذ ، ج ــ ډي) هغه سړے چې د غم او ماتم خبرې خوروي.

**ـــ گډے کېدل** :- د چا په غم کښې شريکېدل.

**ـــ لړلے** :- (ــ ل+ړ+لے)(پ تر، صف ، ج ــ لي) هغه چې په وير کښې مبتلا وي.ـ ويرجن ،ويروهلے،وير ژړلے، ماتم زده.

**ـــ ناک** :- (ـــ نا + ک)(پ تر ، صف، مذ ، مو ــ ه) ويروونکے ، مخوف.

**ـــ وهلے کېدل** :- په وير اخته کېدل ، په وير لړلے کېدل.

**د ـــ وېنا** :- د غم په موقع خاص وېنا ، سانده.

**ويران** :- (وي + را + ن)(صف ، مذ ، مو ــ ه) وران ، ويجاړ ، غېر اباد.

**ويرانول** :- (وي + را + نَ + ؤ + ل)(مص) ورانول ، اوجاړول ، غېر اباد کول ، ويرانه ترې جوړول.ـ بربادول ، تباه کول ، (کلے ، ملک وغېره).

**ويرانونه** :- (وي + را + نَ + و + نَ)(حمص) ويجاړونه ، غېر اباد کونه ، شاړونه.

**ويرانه** :- (وي + را + نَ)(اس ، مو ، ج ــ نې) وران ځاے ، غېر اباد ځاے ، اوجاړه ، ويجاړه.

**ويرانېدل** :- (وي+را+ نې + د + ل) (مص) ورانېدل ، اوجاړېدل ، غېر اباد کېدل ، اباد ے نۀ پاتې کېدل ، شاړېدل.ـ دشت کېدل.

**ويرانېدنـه** :- (وي + را + نـې + د + نَ)(حمـص) ويجاړېدنـه ، اوجاړېدنـه ، شاړېدنه ، غېر اباد کېدنه.

**ويرائېتي** :- (وي + را + ئ + تي)(انگ ،اس،مو) قسم قسم والے ، رنگ په رنگي ، تنوع.

**ـــ شو** :- (ـــ شو)(انگ تر،اس) قسم قسم تماشې ښودنه ، رنگ رنگ لوبې تماشې ښودنه ، ډول ډول ننداري.

**ويرتلل** :- (وي + ر + ت + ل + ل)(و ـــ ورتلل).

**ويردۍ** :-(وي + ر + د + ئ)(اس،مو) د شب گردئ د ممانعت ترم ،برغو ، چې د شب گردئ ممانعت لرې کوي.

**ـــ وهل** :- ترم وهل ، برغو غږول.

**ويرند** :- (وي + ر + ن + د)(پ تر ، صف ، مذ ، مو ــ ه) ويريدونکے ، ويرندوکے ، ډرن ، يرند.

**ويرنده** :- (وي + ر + ن + دَ)(صف ، مو ، ج ــ دې) د ,,ويرند ،، تانيث دے.

**ويرندوکے** :- (و+ي+ر+ن + دو + کے)(پ تر ،اس،مذ ،ج ــ کي) ويريدونکے ، ډرن، ويرند.

**ويرنه** :- (وي + ر + نَ)(اس ،مو ، ج ــ نې) وير ، ماتم.ـ مرثيه.

**ويروسے** :- (وي + رو + سے)(اس، مذ ،ج ـــ سي) مړے (د بل کوم ځاے نه) خپل کلي کور ته راؤړے شي.ـ هغه سړے چې په بل وطن کښې مړ شي او بيا ئې مړے (لاش) خپل کور ته راؤړے شي.

**ويروسے سل** :- (کاکړ وردگ) هغه ډوډۍ چې د جنازې نه وروستو ورکولے شي.

**ويرول** :- (و+ي+ر+ؤ+ل)(مص) ويره ورکول ، خوفزده کول ، ډرول.

**ويرونه** :- (و + ي + ر + ؤ + نَ)(حمص) ويره ورکونه ، خوفزده کونه.

**ويروونکے** :- (و+ ي +ر+وو+ن+کے)(پ تـر ، اس ، فـا ، ج ــ کـي) ويـره ورکوونکے ، خوفزده کوونکے.

**ويره** :- (و + ي + رَ)(اس ، مو،ج ــ رې) خوف ، ډره ، خطره.

**ـــ ,, بودل ،،** :- خطره ,, بودل ،، ، دکوم نقصان کار توقع ,,بودل،، لکه : په دې مرض کښې ئې د مرگ ويره ده.

**ـــ تېرول ، په چا** :- ويره ول ، د کومې خطرناکې پېښې سره خوفزده کول.

**ـــ کول** :- ويرېدل ، خوف محسوسول.

**ـــ کېدل** :- خوف کېدل ، ډرېدل ، خوف محسوسول.

**ـــ کېدل ، دچا نه** :-خوف کېدل د چا نه ، ډره محسوسېدل ، د نقصان د رسېدلو خوف محسوسول.

**ـــ ناک** :- ( - نا + ک)(پ تر،صف ،مذ ،مو- ه) ويروونکے، خوفناک.

**ـــ نۀ کېدل** :- نۀ ويرېدل،د څۀ عمل د سزا يا له بد انجامه نۀ ويرېدل.

**ـــ وړے** :- (ـــ و + ړے)(پ تر ، صف ، مذ ، ج ــ ړي) خوفزده ، هېبت زده ، دهشت وړے.

**په ـــ ويره** :- (پ ـــ + و + ي + رَ)(ت تر،تف) د خوف يا د خطر نه ډک حالت کښې، د ويرې په حالت کښې.

**ويرې** :-(وي + رې)(اس،ظر) هلته ، هورې.

**ويـرې** :-(وي + رې)(اس ، مو ، ج) د ويره ، وېره جمع ده ـ د ويره بدل شکل چې د مغيره ؤ تورو سره راځي.

**ـــ اخستل** :- پـه زړۀ کښـې د کـومې خطـرې احسـاس پيـدا کبـدل ، خطـره محسوسول.

**په زړۀ کښې ـــ** :- په زړۀ کښې پټه خطره محسوسول ، (چې په ظاهره ئې نۀ څرگندوي).

**ويرېـدل** :- (و + ي + رې + د + ل)(مـص) خـوفزده کېـدل ، ډرېـدل ، خطـره محسوسول ، بېرېدل.

**ويرېدۀ** :- (و + يَ + رې + د)(حمـص) خطـره محسوسـونه ، خـوفزده کېدنـه ، ډرېدنه.

**وير** :- (وي + ړ)(صف ، مذ ، مو ـــ ه) واز ، پرانستے ، کشاده.ـ خوور وور ، خور کړے ، هوار.

**ـــ خولے** :- (ــ خو+لے)(پ تر،صف ، ج ــ لي)(و ـــ ويت خولے).

**وير** :-(وي + ړ) د ,, يو وړ ،، بدل شکل دے.

**وېړ** :- (وې + ړ)(اس ، مذ ، ج ــ ونه) د بوټو څخه جوړ شوے دېوال ، کېږ.

**وېړونے** :- (وے + ړ + ؤ + نے)(پ تر، اس ، مذ ، ج ــ ني) غوزولے ، فرش.

**وېړه** :- (وي + ړَ)(اس ، مو ، ج ـــ ړې) د ,,وېړ ،، تانيثي شکل دے.

**ـــ خولۀ** :- (ـــ خ + لَ)(پ تر ، اس ، مو) پرانستې خولۀ ، بقه خولۀ ، په حېرانتيا کښې وازه نيولې خولۀ.ـ د سوال دپاره پرانستې خولۀ.

**ـــ اولمه** :- (ـــ او + ل + مَ)(پ تر ، اس ، مو) کشاده زمکه ، او په مبداني

هواره زمکه.

**ـــــ اولمه کېدل** :- د هوامعتدل کېدل ، موسم ښهٔ کېدل ، سپرلے کېدل ، بهار راتلل ، که ویره اولمه شوه بیا به لاهور ته درومو !

**ویړکے** :-(وي + ړ + کے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ــ کي) وړوکے ، هلک ، طفل ، ووړکے.

**ویړکے** :-(وي + ړ + کے)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ــ کي) هغه اله چې اغړلي اوړهٔ پرې پلنوي.-لوړکے.

**ویړئ** :-(وي + ړ + ئ)(اس ، مو) حلوا .

**ویړلئ** :-(وي + ړ + ل + ئ)(اس ، مو) حلوا ، ویړئ.

**ویـړول** :-(وي + ړ + ؤ + ل)(مـص) خـورول ، کشـاده کـول ، هـوارول ، وازول ، پرانستل ، هوارول (کاکړ).

**ویریا** :- (وي+ر+یا)(صف) مفت،بغیر دقیمته ، اسې ، وړیا .

**ویرېـدل** :- (وي + ري + د + ل)(مـص) خورېـدل ، کشـاده کېـدل ،هوارېـدل ، وازېدل ، پرانستے کېدل.

**ویرېدهٔ** :- (وي + ري + د)(حمص) خورېدهٔ ، خوور وور کېدهٔ ، کشاده کېدهٔ ، هوارېدهٔ ، وازېدهٔ.

**ویز** :- (وي + ز)(اس ، مذ) د پوزې وغېره د تاوؤلو او راښکلو عمل چې ښهٔ او بد ئې معلوم شي.

**ویزار** :- (وي + زا + ر)(صف،مذ ،مو ــــ ه) بېزار ، ناخوښه ، کرکه کوونکے ، په تنګ راغلے.

**ـــــ کول** :- (و ــــ ویزارول) پرانستل ، سپړدل.

**ویزارول** :- (وي + زا + ر + ؤ + ل)(مص) بېزاره کول ، متنفر کول ، کرکه پېدا کول ، ناخوښي پېدا کول ، په خپل ، عمل سره خفه کول.

**ویزاري** :- (وي +زا+ري)(اس،مو) بېزاري ، کرکه ، ناخوښي.

**ویزارېدل** :- (وي + زا + ري + د + ل)(مص) وېزاره کېدل ، بېزاره کېدل ، د یو څیز یا کوم سړي نه په تنګ راتلل.-ناخوښي پېدا کېدل ، د چا د عمل په وجه په زړهٔ کښې خفګان پېدا کېدل.

**ویزه** :- (وي + زَ)(انګ ، اس ، مو ، ج ــ زې) ویزا تصدیق ، اجازه ، په یو ملک کښې د داخلېدلو اجازت نامه ، هغه پروانه چې باهرنے سړے پرې په یو ملک کښې داخلېدے شي.

**ـــــ اخیستل** :- بل ملک ته د تللو دپاره ددغې ملک نه اجازت نامه اخیستل.

**ـــــ کول** :- باهرني کوم ملک ته د تللو دپاره ددغې ملک څخه اجازت نامه اخیستل.

**ـــــ ورکول** :- په یو ملک کښې د داخلېدلو لپکلې اجازت نامه ورکول.

**داقامت ـــــ** :- (د ، ا + قا + م +ت ـــ)(انګ ،پ تر،اس،مو) په یو ملک کښې د پاتې کېدلو اجازت نامه.

**دخروج ـــــ** :- (د ، خ + رو + ج ـــــ)(انګ،پ تر،اس،مو) د یو ملک څخه د باهر تللو اجازت نامه.

**ویږل** :- (و + ي + ګ / ژ + ل)(مص) غزېدل، ور اوږدېدل،ورخورېدل.

**ویږه** :- (وي + ګ / ژَ)(اس،مو،ج ـــ ږې) پله ، عصب.

**ویږے** :- (وي + ګے / ژے)(اس ،مذ ،ج ـــ ږي) د ,,ویږ،، جمع ده - وږے ، وګے ، خوشه ، د اسمان په دولسو برجونو کښې د یو برج نوم.-سنبله. د شمسي کال شپږمه میاشت.۲۴ اګست نه تر ۲۲ ستمبر پورې دي.

**ویږے** :- (وي+ګے/ ژے)(اس،مذ ،ج ـــ ږي) د فقیرانو کند ،د ملنګانو جامه.

**ویســـتاړے** :- (وي+س+تـا+ړے)(اس،ظر،مــذ ،ج ــــــ ړي) وروســتنے، وروستونے.

**ویستل** :- (وي + س + ت+ل)(مص) اباسل ، اوښکل ، اېستل.

**له ښې ـــــ** :- (ل + خې /شې ـــ).

**له ښې تو ښې ـــــ** :- (تو + خې / شې ـــ) د کاره اېستل.

**ویسم** :- (وي + س + م)(و ــــ یوسم).

**ویســـڼ** :- (وي + س + ن + ړ)(اس ، جـم) د چنـو اوړهٔ چـې د پکـوړو وغېـره د جوړولو دپاره پکارېږي.

**ویسو** :-(وي + سو)(و ــــ یوسو).

**ویسي** :- (وي + سي)(و ــــ یوسي).

**ویسئ** :- (وي + س + ئ)(فعل) د ویسل (یوسل) مصدر څخه. د جمـع امـر فعل.- د شرطي یا تمنائي ماضي فعل (جمع حاضر ضیغه).

**ویسے** :-(وي + سے)(و ــــ یوسې).

**ویش** :- (وي + ش)(حرف) د افسوس تورے دے.-داخ.

**ویش** :- (وي + ش)(حرف) د خوږ د څرګندولو تورے دے.

**ـــــ ویش** :- (حرف) د خوږ او درد د څرګندلو تورے. اُف اُف.

**ـــــ ویش کول** :- د خوږ او درد اظهار کول ، اُف اُف کول.

**ـــــ نهٔ کول** :- اُف نهٔ کول ، د خوږ او درد اظهار نهٔ کول.-په خوږ درد کښې کلک اوسېدل.

**ویش** :- (وي + ش)(اس،مذ ،ج ــــ ونه) تقسیم ، بخرې بخرې کونه.

**ـــ کول** :- وېشل،تقسیمول،حصې حصې کول ،برخې برخې کول.

**ـــــ کېدل** :- تقسیمېدل ، تقسیم کېدل.

**ـــــ ګډېدل** :- تقسیم یو ځاے کېدل ، د کور په خرڅ وغېره د ټولو سره شریکېدل.

**ویشیه** :- (وي + ش + پَ)(اس ، مو) مقسوم علیه ، هغه عدد چې بل کوم عدد پرې تقسیمولے شي.

**ـــــ نهٔ کول** :- د درد په رسېدو اُف قدرې نهٔ کول.

**ـــــ ګر** :- (و ــــ ویش ګرندے).

**ـــ ګرندے** :- (ـــ ګ+ر+ن + د ے)(پ تر،اس،مذ ،ج ـــ دي) تقسیم کوونکے ، ویشونکے ، وېشونے.

**ویشت** :- (وي + ش + ت)(لاحقه) د شمېر لاحقه ده .د شل معنې ورکوي . ئیشت، ایشت ، لکه : دوه ویشت.

**ویشت** :-(وي + ش + ت)(اس،مذ ،ج ــــ ونه) ویشتنه ، نشانه بازي ، نخه / نخښه ویشتنه.

**ویشتل** :- (وي + ش + ت + ل)(مص) د لرې نه په (غونډه ګولۍ وغېره) ګذار کول ، نشانه کول ، اس وغېره تېز زغلول ، لکه : شابه اسپه وولوه !

**ـــــ کېدل** :- په ګولۍ وغېره په نخښه کېدل.-وژلے کېدل. غورزولے کېدل.

**په زړهٔ ـــــ** :- په زړهٔ زخمي کول.-مجازاً : په ځان مینول ، عاشق کول.

**ځان ـــــ** :- ((د) زا + ن ـــــ) خپل ځان د ټوپک یا تماچه په ګولۍ نخښه کول ، ځان وژل ، خودکشي کول.

**دزړهٔ په سر ـــــ** :-(و ــــ په زړهٔ ویشتل).

**را ـــــ** :- راغورزول ، غورزول.-لکه : په زمکه ئې را وویشت.

**له زمکې را ـــــ ځان** :- ځان زمکې ته ښکته راغورزول .-مجازاً : د غصې یا د ضد اظهار کول.

**ور ـــــ** :- ور ګذارول ، ور غورزول.

**ویشتلے** :- (وي + ش + ت + لے)(پ تر ،اس ،مف ،ج ــــ لي) هغه چې د کانې ګولۍ وغېره ګذار پرې شوے وي.-زخمي ، ژوبل ، عاشق ، مئین.

**په زړهٔ ـــ** :- هغه چې په زړهٔ زخمي کړے شوے وي .-مجازاً : عاشق، مئین،یا هغه چې د بېزیات غم ورته رسولے شوے وي.

**ویشتونے** :- (وي + ش + تو + نے)(و ــــ ویشتونکے).

**ویشتونکے** :- (وي+ش+تو+ن+کے)(پ تر،اس،فا،ج ـ کي) په کاڼي، ګولۍ وغېره ګذار کوونکے، نښانه کوونکے.

**ویشتنه** :- (وي + ت + نَ)(حمص)(و ـــ ویشتۀ).

**ویشتۀ** :- (وي + ش + ت)(حمص) ویشتنه، په کاڼي، ګولۍ، وغېره ګذار کونه

**وېشل** :- (وې + ش + ل)(اس، مو، ج ـــ لې) یو قسم پراټه چې اوړو نه لېټې شان جوړه کړي او په تبخي ئې خوره کړي او په غوړو ئې غوړه کړي - پاستے.

**وېشلے** :- (وې + ش + لے)(پ تر، اس، مف، ج ـــ لي) وېشلے شوے، تقسیم شوے، هغه چې تقسیم شوے وي-منقسم.

**وېشول** :- (وې + ش + ؤ + ل)(و ـــ وېښول).

**وېشون** :- (وې + شو + ن)(پ تر، اس، مذ) تقسیم، وېشنه.

**ـــ کول** :- وېشل، تقسیم کول، تقسیمول.

**وېشونږے** :- (وې + شو + ن + ږے)(و ـــ وېشونے).

**وېشونکے** :- (وې + شو + ن + کے)(پ تر، اس، فا، ج ـــ کي) وېش کوونکے، تقسیموونکے.

**وېشونے** :- (وې + شو + نے)(پ تر، اس، مذ، ج ـــ ني) وېشونکے، تقسیم کوونکے، وېش ګرندے.

**وېشنه** :- (وې+شَ)(حمص) وېش کونه، تقسیمونه، وېشون کونه.

**وېشه** :- (وې + شَ)(اس، مو، ج ـــ شې) تقسیم، وېشنه.

**ـــ کول** :- تقسیم کول، وېشون کول.

**وېشه** :- (وې + شَ) د وېش یو قسم جمع ده - د "وېش"، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي. لکه: ټول کسان بېله وېشه.

**وېښ** :- (وې+خ/ش)(صف، مذ، ج ـــ ه) بېدار، (د اودۀ ضد) سترګې غړوونکے، هوښیار.

**ـــ اوسېدل** :- بېدار اوسېدل. هوښیار اوسېدل، مستعد اوسېدل.

**ـــ توب** :- (ـــ تو + ب)(پ تر، اس، مذ) بېداري، مستعدي، هوښیاري.

**ـــ تیا** :- (ـــ ت + یا)(پ تر، اس، مو) وېښ والے، بېداري.

**وېښتۀ** :- (وې + خ/ش + ت)(اس، جم) مُو. (اُر ـــ بال).

**ـــ بېر کول** :- وېښتۀ خورول.

**یو ـــ نۀ کنډو کول** :-

**یو ـــ نۀ کنډول** :-

**یو ـــ نۀ کږول** :- مجازاً: معمولي شان نقصان نۀ رسول.

**د ـــ حساب کول** :- د وړو وړو ځیزونو حساب کول، هېڅ ځیز بې حسابه نۀ پرېښودل، پوره پوره حساب کول.

**د ـــ وېښتۀ حساب کول** :- (و ـــ د وېښتۀ حساب کول).

**ـــ په نمر سپینول** :- کنایه ده، ناتجربه کار "بودل"، عموماً په نفي کښې استعمالېږي، لکه: ما دا وېښتۀ په نمر کښې نۀ دي سپین کړي -یعني ناتجربه کار یا کم عقل نۀ یم.

**ـــ تورول** :- وېښتو له تور رنګ ورکول.

**ـــ چوول** :- (محاوره) موشګافي کول، باریکۍ لټول، باریک بیني کول.

**ـــ زیږ زیږ کېدل** :- د بدن وېښتۀ د ویرې له کبله نېغ ودرېدل، ویرې اخستل.

**ـــ سپینېدل** :- د وېښتو رنګ سپین کېدل-مجازاً: بوډا کېدل، زوړ عمر ته رسېدل.

**ـــ کږول، د چا** :- چا ته معمولي شان نقصان یا تکلیف رسول، عموماً د نفي په شکل کښې استعمالېږي-لکه: هغه زما وېښتۀ هم نشي کږولے.

**ـــ کږېدل** :- مجازاً ډېر معمولي شان نقصان رسېدل، وېښتۀ کنډاؤ کېدل. (عموماً د نفي په شکل کښې استعمالېږي).

**وېښلے** :-(وي+خ/ش+لے)(و ـــ وېشکے)(غالباً چې وېخلے ځوک نۀ وائي).

**وېښواله** :- (وي+خ/ش+وا+لَ)(پ تر، اس، مو) بېداري، د وېښې حالت.

**وېښول** :- (وې + خ/ش + ؤ + ل)(مص) بېدارول، د خوبه پاسول، هوښیارول، مستعد کول.

**وېښــونه** :- (وې + خ/ش + ؤ + نَ)(حمــص) بېدارونــه، د خوبــه پاســونه، هوښیارونه

**وېښه** :- (وې + خ/شَ)(اس، مو، ج ـــ ښې) بېداري. (د خوب ضد).

**په ـــ** :- (پ ـــ) په بېدارۍ کښې. د بېدارۍ په حالت کښې.

**په ـــ خوب لیدل** :- په بېدارۍ کښې خوب لیدل. خیالي پلاؤ پخول.

**په ـــ صبا کول** :- ټوله شپه خوب نۀ کول، درسته شپه رېنول.

**دا ـــ ده که خوب دے** :- د حېرت د اظهار دپاره وئیلے شي چې زۀ چې دا عجیبه یا ناشونې خبره وینم. ایا دا رښتیا دي که نه زۀ خوب وینم.

**وېښې** :-(وې + خې/شې) د "وېښه"، جمع - د "وېښه"، بدل شکل چې د مغیره ؤ تورو سره راځي.

**د ـــ مور نه زوے پټول** :- بې کچه ډېره چالاکي ښودل. د وېښې مور ځخه زوے پټوي (متل).

**وېښېدل** :- (وې + خې/شې+ د + ل)(مص) بېدارېدل، د خوبه راپاسېدل، هوښیارېدل.

**دماغ ـــ** :- د دماغ اماده کېدل.

**وېښیه** :- (وې + + خ/ش + يَ)(فعل) د "وئې ښایه"، لنډیز شکل دے.

**وېښیۀ** :- (وې + خ/ش + ئ)(فعل د "وئې ښایۀ"، لنډ شکل دے -هغه ؤښایۀ.

**وېغ وېغ** :- (وې + غ + وې + غ)(اس، صوت) دګېدړانو اواز، ګیدړان د هُو هُو، اوږدۀ اوازونه کوي -خو ورسره ځینې په کښې ورو ورو "وېغ وېغ"، په شان اواز هم راوباسي.

**ـــ کول** :- د ګیدړانو اواز کول، هُو هُو کول.

**وېفر** :- (وې + ف + ر)(انګ، اس، مذ، ج ـــ ونه) د بسکټو یو قسم، چې دو تهه لري. کرېند بسکټ.

**وېک** :- (وې + ک)(فعل) ګوره، وګوره، کسه. لکه: ځان ته وېک بیا بل ته سلام علیک! (متل). د هندکو ټکے دے وېکه وګوره یا ګوره).

**ویکاره** :- (وې + کا + رَ)(اس، مو، ج ـ رې) (بل) چغه، بغاره.

**دویر ـــ** :- د، وې + ر ـــ)(پ تر، اس، ج) د ویر چغې، د ویر ژړاګانې.

**ویکسین** :- (وې + ک + سې + ن)(انګ، اس، مذ) د غټو تنکو دپاره د خال وهلو دارو. د رګونو وهلو بند دارو.

**ویکسي نېشن** :- (وي+ک+سي+نې+ش+ن)(انګ، اس، مذ) واکسیناسیون، خال وهنه، رګ وهنه.

**ویکسي نېټر** :- (وي + ک + سي + نې + ټ+ر)(پ تر، اس، مذ، ج ـ ان) هغه تربیت موندلے سړے چې د مرضونو دپاره رګونه وهي رګونه وهونکے، خالونه وهونکے.

**ویکنسي** :-(وي + ک + ن + سي)(انګ، اس، مو) خالي ځاے، خصوصاً د نوکرۍ دپاره خالي ځاے.

**ویکیوم** :- (وي + ک + یُو + م)(انګ، اس، مذ، ج ـــ ونه) نشیا، خلا، خالي ځاے چې په کښې هېڅ هم نۀ وي. ګوګ والے.

**ـــ بوتل** :- (انګ پ تر، اس، مذ، ج ـــ ونه) ترماس، هغه بوتل چې چار چاپېره ځاے ئې بېخي خالي وي. ځکه سړدي ګرمي دغې بوتل ته نۀ رسي. او اوبۀ وغېره په کښې تر ډېر ساعته پورې یخې یا ګرمې پاتې

کبږي.

**وبګلې** :-(وې+ګ+لې)(اس،مذ) د هلکانو د یوې لوبې نوم.

**وبګن** :- (وې+ګ+ن)(اس، مذ، ج ـــ ونه) واګون، د څلورو پایو ګاډے. د رېل ګاډي هغه ډبه چې مال په کښې وړے شي.

**وبګن** :- (وې+ګ+ ن)(انګ،اس،مذ،ج ـــ ونه) وړوکې لارۍ چې په کښې دولس دیارلس کسان کښېناستے شي.

**ـــ چلول** :- وبګن ګاډے (په کرایه) چلول، د وبګن ډرېوري کول.

**وبل** :- (وې+ل)(اس، مذ) په دوزخ کښې یو وادي ده.

**وبل** :- (وې+ل)(اس، مذ، ج ـــ لونه) د کبانو یو لوے قسم. وهیل.

**فرائي ـــ** :-(ف+را+ئي ـــ).

**ري ـــ** :-(ف+ري ـــ)(انګ، تر، اس، مذ، ج ـــ ونه) د بائیسکل او د داسې نورو مشینونو یوه پرزه.

**ـــ کپ** :-(ـــ ک+پ)(انګ تر،اس،مذ،ج ـــ ونه) هغه کنډول یا رکیبۍ شان چې د موټرو، ګاډو د پایو باهر طرف ته لګېدلي وي او د پائې دغه برخه د دوړو څخه بچ ساتي.

**وېل** :- (وې+ل)(اس، مذ، ج ـــ ونه) چنده، په وادهٔ ښادۍ کښې خپل خپلوان چې کومې پیسې ټکې په خاصو خاصو موقعو ورکوي.(هند: وېل).

**ـــ ټولول** :- په وادهٔ ښادۍ کښې په ځینو خاصو خاصو موقعو د خپلو خپلوانو نه چنده ټولول.

**ـــ ورکول** :-

**ـــ اچول** :- په وادهٔ ښادۍ کښې په خاصو خاصو موقعو د خپلو خپلوانو چنده ورکول.

**وبل** :- (و+ئ+ل).

**وبل** :- (وې+ل)(مص) خبرې کول، وینا یا ګفتګو کول، زده کول (سبق) نصیحت، پند. پیغام.

**وبل** :-(و+ئ+ل)(اس، مذ) اقرار (د انکار ضد).

**وېلډن** :- (وِ+ل+ډ+ن)(انګ تر) د افرین او شاباسې کلمه ده. شاباسې، افرین، ډېر ښهٔ.

**وېلاړ** :- (وے+لا+ړ)(اس، مذ) په زړهٔ کښې لرنه، نیت، اراده، عزم.

په وېلاړ وېلاړ به ځان ورپسې ورک کړې
چېرې نــــهٔ وي چې د ترکو په وېلاړ شې (رحمان بابا)

حکم.

چې وېلاړ ئې په وېلاړ شو
پــه قیــامت دے ولاړ شو (ارزاني)

**ویـلاړ / وېـلاړ** :- (وي/وې+لا+ړ) د "ولاړ" بـدل شـکل دے. اودرېدلے، استاده.

**ویلاړو** :- (وي+لا+ړ+ؤ+ل)(مص) اودرول، درول، استاده کول.

**ویلاړېدل** :- (وي+لا+ړې+د+ل)(مص) ودرېدل، استاده کېدل.

**وېلاے** :- (وي+لا+ے)(فعل) د فعل خبر، لکه وېلاے نهٔ شو! وېلې وے. لکه: تا به وېلاے!

**وېلډنګ** :- (و+ل+ډ+ن+ګ)(اس، مذ) کوشیر کونه، کوسیرونه.

**ـــ کاري** :- (ـــ کا+ري)(انګ، ف، تر اس، مو) د کوشیرولو کار یا هنر.

**وېلړل** :- (وې+ل+ړ+ل)(مص) ویاړل، فخر کول. افتخار وربخښل.

**وېلنه** :- (وے+ل+ن)(اس، مو) ارزاني، کم نرخي.

**ویلوب** :- (وي+لو+ب)(پ تر،اس،مذ) ویلې شوې ماده. لاوه. د اتش فشانه غرونو لاوه.

**ویلول** :-(وي+ل+ؤ+ل)(مص) ویلے کول، کلک څیز په اور باندې نرمول، اوبهٔ کول.

**ویلون** :-(وي+لو+ن)(پ تر،اس،مذ) ویلې کېدنه، اوبهٔ کېدنه، نرمېدنه، نرمي، ګداز.

**ویلونــه** :- (وي+ل+ؤ+نَ)(حمـص) ویلـې کونـه، اوبـهٔ کونـه، نرمونـه، ګدازونه.

**وېله** :- (وې+لَ)(اس، مو، ج ـــ لې) وله، واله، لوے لښتے، نډۍ، جوے. (خج په "ل" باندې دے).

**وېله** :- (وې+لَ)(اس، مو، ج ـــ لې) نفع، فائده، ګټه.

**ویلي** :- (وي+لي)(و ـــ ویلې).

**ویلے** :- (وي+لے)(پ تر، اس، مف) ویلے شوې، ګداز، نرم شوے، اوبهٔ شوے.

**وېلے** :- (وے+لے)(اس، مذ) یو هډوکي ماتوونکے مرض، ببلګونه.

**وېلے** :- (وے+لے)(حرف) کلمه استفهام، ولې، څهٔ لره.

**ـــ کول** :- (و ـــ ویلول).

**ـــ کول، مال** :- سامان متاع وغېره (ارزان) خرڅول، مال بدلول.

**ـــ کېدل** :- (و ـــ ویلېدل).

**ویلېدل** :- (وي+لې+د+ل)(مص) ویلې کېدل، سخت څیز په اور یا ګرمۍ سره اوبهٔ کېدل، نرمېدل.

**ویلېدنه** :- (وي+لې+د+نَ)(حمص) ویلې کېدنه، اوبهٔ کېدنه، نرمېدنه ګداز کېدنه، ګدازېدنه.

**ویلېدهٔ** :-(وي+لې+د)(و ـــ ویلېدنه).

**ویل / وېل** :-(فعل) وې ئې، وې وئیل لکه: دهٔ وئیل زهٔ نهٔ منم.

**پوچ ـــ** :-پوچه وینا کول، کنځل کول.

**دروغ ـــ** :- دروغ خبرې کول، د ځانه جوړې کړې خبرې کول.

**رښتیا ـــ** :- رښتیا خبرې کول، حقه وینا کول. چې څنګه ئې لیدلي یا اورېدلي وي هم هغه شان وئیل.

**دروغ رښتیا ـــ** :- څهٔ خبرې دروغ او څهٔ رښتیا خبرې کول. عموماً: دروغ وئیل، د ځانه جوړې کړې خبرې کول.

**ـــ کول** :- وینا کول، ګفتګو کول، خبرې کول.

**ـــ کېدل** :- وئیلې کېدل، د خلقو څخه اورېدلے کېدل.

**ښهٔ ـــ** :- (خ/ش ـــ) ښهٔ خبره کول، حقه خبره کول. د چا صفت کول، تعریف کول.

**بد ـــ** :- (ب+د ـــ) بده خبره کول. د چا په حقله بده خبره، کول، غندل، غندنه کول.

**څهٔ ـــ کړم** :- (جمله) څهٔ وېنا به وکړم، څهٔ به ووایم یعني هېڅ وئیلے نشم.

د تقوی د پارسایۍ دعــا تل کړم
چې دعا مې اثر نهٔ کا څهٔ وئیل کړم (خوشحال)

**سبق ـــ** :- سبق لوستل، سبق زده کول، شاګردي کول د چا.

**وبل** :- (وي+ل) د "وے" بدل شکل دے. لکه: ما وېل یا وېل مې.

**ویل / وېل** :- (اس، مذ) وینا، ګفت، خبره. دا وئیل مې یاد کړه!

**ویل** :- (و+ئ+ل)(و ـــ وهل).

**ویل** :- (وے+ل)(ع، حرف) افسوس.

چې د شاه له محبته خبر نهٔ شو
تــر ابده د هغــو بخره ده ویل (خواجه محمد)

**ویل** :- (وي+ل)(صف، مذ، مو ـــ ه) وېر، پرانستے، سپړدے، ویال.

**ويل ، چاسره** :- مقابله کول ، سيالي کول ، برابرے کول ، په دې فن کښې تۀ هغه سره نشې ويلې۔

**ويل** :- (وي + ل) (انګ ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه) پايه ، پل ۔ (نورو الفاظو سره راځي)۔

**وېل** :- (و + ل) (انګ ، حرف) ښۀ ، خوب ، نو ، نوبيا ، (په پښتو کښې نورو الفاظو سره راځي)۔

**ويل** :- (وي + ل) (صف ، مذ ، مو ـــ ه) ويړ ، پرانستے ، روڼ۔

په ويل وچولي غم يوسم د غمجنو

کـــه هـــر څو نه خاطر حزين لرم (عبدالقادر)

**ويل** :- (وے + ل) (اس،مذ) ارزاني ، وېلنه۔

**ويلے** :- (وي + لے) (اس،مذ،ج ـــ لي) يو قسم دانه ده۔

**وېلے** :- (وې + لے) (حرف) د تپوس تورے دے ۔ولې ، څۀ لره ، د څۀ دپاره ، په څۀ وجه۔

**وين** :- (وي (ن) (اس جم) د ,,وينې ،، پخوانے ليک۔

**ويـن** :- (وي + نِ) (فعـل) د ,,وينـې ،، پخوانے ليـک ۔د ,,ليـدل ،، مصدر څخه دحال فعل (واحد حاضر صيغه)۔

**وين** :- (وي + ن)۔

**وينا** :-(وي + نا) (اس ، مذ ، ج ـــ ونه) تعبير ، (د خوبۀ د دخوب تاويل)۔

**وېنا** :- (وې + نـا) (اس ، مـو ، ج ـــ ګانې/وې) ويـل ، ګفت ، بيـان ، تقرير ، ستغې سپورې خبرې۔بد رد ۔

که مې هره وېنا دُر شي يا ګوهر شي

ستا د غـــوړ نـۀ ده لائق وېنـــا زما (رحمان بابا)

**ـــــ دوېر** :- (ـــ د ، وي + ر) (و ـــ د وير وېنا)۔

**ترخه ـــ** :- (ت + ر + خ ـــ) ترخې خبرې ، بد رد وئيل۔زورنه۔

**خوب ـــ** :- (خو + ب ـــ) (پ تر،اس،مذ) د خوب تعبير۔

**خـوږه ـــ** :- (خ +ن و + ګ/ژ ـــ) (پ تر ،اس ،مـو) خـوږې خبـرې ، نرمـې او پستې خبرې، خوښېدونکے تقرير۔

**د ـــ اجـزاء** :- (د ـــ ا + ج + زا) (پ تر،اس،ج) د کلام اجزاء ، اسم ، فعـل او حرف (تورے)۔

**مستقيمه ـــ** :- (م+س +ت+ قي+مَ ـــ) سمه وېنا ،نېغ په نېغې خبره۔

**وېنا ـــ** :- بد و رد وئيـل۔ ستغې سپورې خبرې کول ، زورنه ورکول۔ خبرې کول ، بيان کول ، تقرير کول۔

**مخنۍ ـــ** :- (م + خ + ن + ئ ـــ) (پ تر ،اس ،مو) اولنـۍ وېنـا ، د تقريـر يـا د ليک اولنے بيان ، پيش لفظ ، لکه : د کتاب مخنۍ وېنا۔

**وينځکـۍ** :- (وي + ن + (د) ز + ک + ئ) (اس،مـو) د وينځـه تصـغير دے ۔ وړه وينځه د حقارت يا د مينې نه لوئې وينځې ته هم وايۀ شي۔

**وينځـل** :- (وي + ن + (د) + ز +ل) (مـص) پـه اوبـو سـره صـفا کـول ، پـاکول ، مينځل۔

**ـــ کېدل** :- وينځلے کېدل ، صفا کېدل ، پاکېدل، مينځل کېدل۔

**لاس ـــ د څه نه** :- مايوسه کېدل ، طمع قطعې کول۔

**مخ ـــ** :- د چا په قصور پرده اچول ، د چا د قصور صفائي کول۔

**مخ لاس ـــ** :-(م+ خ + لا+ س ـــ) لاسونه او مخ په اوبو پاکول۔

**وينځلے** :- (وي + ن (د) ز + لے) (پ تر،اس،مف ، ج ـــ لي) وينځلے شوے ، صفا ، پاک ، پاکيزه مينځلے۔

**ـــ سترګې** :- (ـــ س + ت + ر + ګې) مجازاً : بې حيا سترګې۔

**وينځم** :- (وي + ن + (د) ز + م) (فعـل) د ,,وينځل ،، مصدر څخه د حال فعـل (واحد متکلم صيغه) مينځم۔

**وينځنه** :- (وي + ن + (د) + ز + نَ) (حمص) په اوبو سره صفا کونه ، په اوبو سره د جامو يا لوښو وغېره نه خيرے وغېره لرې کونه ، مينځنه۔

**مخ ـــ** :- (م + خ ـــ) د چا د قصور دپاره عـذر لټونه ۔د چا د غلطۍ د صفائي کونه۔

**وينځو** :-(وي + ن + (د) زو) (فعـل) د وينځـل مصدر څخه د حال فعـل (د جمع متکلم صيغه)۔

**وينځه** :- (وي + ن + (د) زَ) (فعـل) د ,,وينځل ،، مصدر نه د استمرار امر ، مينځه۔

**وينځه** :- (وي + ن + (د) + زَ) (اس،مـو،ج ـــ ځې) پـه بيعـه اخستې شـوې ښځه ، کنيز ، مينځه۔

**وينځه** :-(وي + ن + (د) + زَ) (حمص) صفا کونه ، پاکونه ، مينځه ، مينځۀ۔

**وينځه** :-(وي + ن + (د) + زَ) (فعل) د وينځل مصدر څخه د امر (استمرار) فعل۔

**وينځه** :- (وي + ن + (د) + زَ) (اس،مو،ج ـــ ځې) فال ، داغ ، نخښه ، خاپ۔

په دا سرو شونډو ئې نۀ ده وينځه توره

راشـــه خضر د حېوان په چشمه ګوره (خوشحال)

**وينځي** :-(وي + ن + (د) زي) (فعـل) د ,,وينځـل ،، مصـدر څخه د حـال فعـل (د غائب صيغه) ، مينځي۔

**وينځې** :- (وي + ن + (د) زې) (فعـل) د ,,وينځـل ،، مصـدر څخه د حـال فعـل (واحد حاضر صيغه) مينځې۔

**وينځئ** :-(وي + ن + (د) + ز + ئ) (فعل) د ,,وينځل ،، مصدر څخه د حال فعل (د جمع حاضر صيغه) ، مينځئ۔

**وينـد** :- (و + ئ + ن + د) (صف،مذ ،مو ـــ ه) ويـونکے ، وېنـا کـوونکے ، تقريـر کوونکے ، خبرې کوونکے۔

**وينـدوګے** :- (و + ي +ن+دو+ګے) (پ تر،صف ،اس ، ج ـــ ګي) ډېـرې خبـرې کوونکے ، کړتونے۔وېند ، ويندے ، خبرې کوونکے۔

**وينده** :- (و + ي + ن + دَ) (صف ،مو،ج ـــ دې) د ,,وېند ،، تانيث دے۔

**ويندے** :- (و + ئ + ن + دے) (اس ، مذ،ج ـ دي) (و ـــ وېند)۔

**ويندې** :- (و + ئ + ن + د + ئ) د ,,ويندے ،، تانيث دے۔

**وينـدے** :- (وي + ن + دے) (اس،مـذ) د پـوزې وينـې ۔لـه پـوزې وينـې د راماتېدلو مرض۔

**وېنۍ** :- (وې + ړ + ی) (اس،مو) د ګنده اوبو نالۍ ، هغه نالۍ چې د کور / يا د کورونو ګنده اوبۀ د کلي يا ښهر نه باهر ته رسوي۔

**ـــ ته غورزول** :- ډېر ناپکاره ګڼل ، ضائع کول۔

**وينس** :-(و+ن+س) (اس ، مع) زهره ،سياره ، د زهره مجسمه۔

**وينکښه** :- (وي + ن + ک + ځ/شَ) (اس،مذ) وينې وښکنه ، خون کشي۔

**وينکښـے** :- (وي + ن + ک + خے/شـے) (اس ، مـذ ، ج ـــ ښـي) وينـې وښکوونکے ، حجام۔

**وېنلے** :- (وے + ن + لے) (اس ، مذ) وېلنے ، ځنګلي پودينه۔

**وينم** :- (وي + ن + م) (فعـل) د ,,وينـل ،، (ليـدل) مصدر څخه د حال فعـل (د واحد متکلم صيغه)۔

**وېنو** :- (وے + نو) د ,,وېنـه ،، (جمـع) بـدل شـکل چـې د مغيـرهٔ تـورو سـره استعمالېږي۔

**ـــ وهلے** :- (ـــ و + هـ + لے)۔

**ـــ خوړلے** :- (ـــ خ + و + ړ + لے) هغه لرګے يا لرګين څيز چې څۀ برخه ئې وېنو خوړلې وي۔

**وينو** :- (وي + نو) د ,,وينې ،، (جمع) بدل شکل چې د مغيرهٔ تورو سره

راځي۔

**د ـــ بانک** :- (د ـــ با + ن + ک ).

**د ـــ بېنک** :- (د ـــ بې + ن + ک)(پ تر ، اس ، مذ ، ج ـــ ونه)په هسپتالونو کښې هغه ځاے چېرته چې د بني ادمانو وینې ویلې او محفوظ ساتلے شي۔

**ـــ ته تږے، دچا** :- (و ـــــ د وینې تږے).

**ـــ ته تږے کېښناستل،دچا** :- د چا وژلو ته اماده ,, بودل،، ۔د چا د قتل دموقعې انتظار کول۔ مجازاً : د سر دښمن ,, بودل ،، ۔

**په ـــ سره** :- (پ ـــ س + ر )(پ تر ، صف ، مو ، ج ـــ رې ) د ,, په وینو سُور ،، تانیث دے۔

**د ـــ څلکې** :- (پ تر ، ج ) د وینو دارې ۔ په چاړۀ ئې پوزه پرې شوه او د وینو څلکې شوې۔

**په ـــ سور** :- (په ـــ سُو + ر )(پ تر،صف) سخت زخمي ، ژوبل ژوبل ، زخمي زخمي ، چې د زخم یا زخمونو نه ئې وینې رابهیدلې وي۔او بدن یا جامې ئې پرې سرې شوې وي۔

**په ـــ ککړ** :- (پ ـــ ک + ک + ړ ).

**په ـــ لژند** :- (پ ـــ ل + ژ + ن + د ).

**په ـــ لړلے** :- (پ ـــ ل+ړ+لے)(پ تر ، صف) سخت زخمي ، ژوبل ، جوبل جوبل ، ژوبل ژوبل ، چې د زخمونو نه ئې وینې راتوئې شوې او په ټول بدن یا جامو ئې خورې شوې وي۔

**په ـــ ککړه** :- (پ ـــ ک + ک + ړَ ).

**په ـــ لژنده** :- (پ ـــ ل+ژ+ن+دَ )(پ تر،صف ، مو ، ج ـــ رې ، دې) د ,, په وینو ککړ / لژند ،، تانیث دے۔

**وینو** :- (وي + نو )(فعل) د ,, وینل ،، (لیدل) مصدر څخه د حال فعل (د جمع متکلم صیغه)۔

**وینول** :- (وي + ن + ؤ + ل )(مص ) وینې کول ، وینې رابهول۔

**وېنۀ** :- (وې + نۀ )(اس،جم ) یو قسم چینجے چې په لرګي کښې پیدا کېږي ۔ او دغه لرګے خوري ۔ (اُر ـ دیمک ) ۔ مطلق چینجے چې په مختلفو څیزونو لګي۔

**ـــ پرې لګېدل** :- په لرګي کښې د لرګي خوړلو واله چینجي پیدا کېدل،د لرګي په وېنو خوړلے کېدل۔مجازاً : په کمي راتلل۔

**وېنه** :- (وې + نَ)(اس،مو ) شیشه ، زجاج ، ائینه۔

**وینه** :- (وي + نَ )(اس ، مو ، ج ـــ نې ) خون۔

**ـــ تودېدل / ګرمېدل** :- په وینه کښې ګرمي پیدا کېدل۔د غصې له کبله د زړۀ د حرکت د تېزېدلو په وجه وینه ګرمېدل۔ ډېر زیات په قهر کېدل۔ د کوم کار دپاره اماده کېدل۔

**شریاني ـــ** :- (ش + ر + یا + ني ـــــ )(عب ، تر،اس،مو ) هغه وینه چې په شریانونو کښې ګرځي ۔ (شریان هغه رګ ته وائي کوم چې صفا وینه د زړۀ نه بدن ته رسوي ،صفا شوې وینه۔

**ـــ ورکول** :- په هسپتال کښې خپله وینه د کوم مریض دپاره ورکول ۔یا د مریضانو دپاره د وینې بینک کښې جمع کول۔

**وینې** :- (وي + نې) د ,, وینه ،، جمع ۔ د ,, وینه ،، بدل شکل چې د مغیرۀ توړو سره راځي۔

**ـــ اخیستل** :- اجل اخیستل ،اجل په مخه کول۔لکه: فلانے وینو اخستے دے چې دغو خلقو له ورځي۔

**ـ اوبۀ کول** :- ډېره زیاته ویره یاغم په چاتېرول۔وینې وچول۔هلکه: داسې ورک شوې چې زماخودې سېر وینې اوبۀ کړې۔

**ـــ په اور غوړي نیول** :- خپل ځان په مرګ شمېرل ، سر په تلي کښې نیول۔

**ـــ وچېدل** :- ویرې اخیستل۔د ډېر غم او فکرونو له کبله بدن مانده کېدل۔

**ـــ سرې کېدل** :- ځان د بل نه اوچت او غوره ګڼل ۔ ستا نو د چا څخه وینې سرې دي۔چې نورو سره کار نۀ کوې۔

**ـــ خټکېدل، چاته** :-

**ـــ خټېدل، چاته** :- چاته ډېر په قهر غصه کښې ,,بودل،، ۔

**په ـــ ژړل** :- په سرو اوښکو ژړل ۔د سترګو نه د اوښکو په ځاے وینې تویول ، مجازاً : ډېر زیات ژړل۔

څوک چې یار په اوښکو ژاړي ژړا نۀ ده
ژړا دا ده چــــې وژاړي پـــه وینــې (خوشحال)

**د سرې ـــ خاوند / څښتن** :- (پ تر،اس،مذ ،ج ـــ ان) هغـه سړے چې وینه ئې سړه / یخه وي ۔مجازاً: صبرناک ، تحمل واله سړے چې زر نۀ په قهرېږي۔

**ـــ سړېدل** :- په وینه کښې جوش نۀ پاتې کېدل ۔جوش ولوله نۀ پاتې کېدل ۔ وینې سپینېدل ،د خپلولۍ او صله رحم جذبه نۀ پاتې کېدل ۔ناترسه او سخت زړے کېدل۔

**ـــ ژړل** :- په ژړا کښې له سترګو په وینو سرې اوښکې تویول ، مجازاً : ډېر زیات ژړل۔

زۀ دا ستا له غمـه ژاړم واړه وینې
واړه وینې ، واړه وینې ، واړه وینې (رحمان بابا )

**د تودې ـــ خاوند** :- (پ تر ، اس ، ج ـــ ان ) هغه سړے چې وینه ئې ګرمه یا توده وي۔ مجازاً : ډېر زر په غصه کېدونکے ، قهرندوکے۔

**ویو** :- (وي + و )(انګ ، اس ، مذ ) چپه ، لهر۔

**شارټ ـــ** :- (شا + ر + ټ ـــ)(انګ تر ، اس ، مذ ) لنډه چپه ، چې په رېډیوګانو کښې پکارولے شي۔

**لانګ ـــ** :- (لا + ن + ګ ـــ)(انګ،تر،اس،مذ ) اوږده چپه ، چې په رېډیو کښې پکارولے شي۔

**میډیم ـــ** :- (مي + ډ / ډي + ی + م ـــ)(انګ ،تر،اس،مذ )د منځ درجې څپه ، چې په رېډیو کښې پکارولے شي۔

**ویوست** :- (و + یو + س + ت )(فعل) وویست ، وباسۀ ، وښکۀ۔

چې هر یار ته مې تر خولۀ ویوست اواز
زر په واړه عالم خورشۀ هغــــــه راز (خوشحال)

**ویول** :- (و + ي + ؤ +ل )(مص) په وئیلو راوستل ، په ګفتار کول۔ګویا کول۔

چې دا خولۀ خوزوي دے دے
ژبــه ستــا ویـــــوي زړۀ ! (خوشحال)

**ویـول** :- (و + ي + ؤ + ل )(مـص ) پـه خبـرو کـول ، پـه ګفتـار راوستـل ، خبرې ابستل۔

**ویون** :- (و+یو+ن )(پ تر،اس،مذ ) وینا ، ګفتار ، خبرې ، تقریر۔

**ویونکے** :- (و+یـو+ن+ کـے )(پ تر ،اس ،فـا ،ج ـــ کـي ) وئیلـو والـه ، خبـرې کوونکے ، وینا کوونکے ، تقریر کوونکے۔

**ویوونکے** :- (و+ي +وو+ن+ کے)(پ تر ،اس ،فا ،ج ـــ کي ) په خبرو راوستونکے ، خبرې ایستونکے ، په ګفتار کوونکے۔

**ویونه** :- (و + شي + ؤ + نَ )(حمص ) په خبرو راوستنه ، خبرې ابستنه ، په ګفتار کونه۔

**ویونے** :-(و + یـو + نـے )(و ـــ ویـونکے ) ویویـل :(وې+و + يُ + ل )(جمله) د ,, وئي ویل ،، لنډ شکل دے۔

**ویوهړ** :- (و + یو + هـ + ړ )(و ـــ یووړ )۔

**ویوهړه** :- (و + یو + هـ + ړَ)(و ــ یووړه)۔

**ویوهړے** :- (و + یو + هـ + ړے)(و ــ یووړے)۔

**ویه** :- (ؤ + يَ)(اس ، مو ، ج ــ یېِ) هګۍ ، اګۍ ، ها ۔

**وېلن** :- (وې + ب + ل + ن)(و ــ اوبلن)۔

**وي به** :- (وي + بَ)(پ تر ، اس) حکم۔

**وي پي** :- (وي + پي)(انګ ، اس) د ویلیو او بے ایبل د لفظونو د سر توري دي ۔ داسې پارسل وغېره ته وائي چې قیمت ئې د پابنده نه / څخه وصولولے شي۔

**ـــ پارسل** :- هغه پارسل چې قیمت ئې د پابنده نه وصول کړے شي او لیکونکي ته ادا کړے شي۔

**ـــ کول** :- د ویلیو پې ایبل پارسل په ذریعه کوم څیز چاته لېږل ۔ چې قیمت ئې ددې سړي نه ، چا ته چې لېږلے شوے دے وصول کړے شي او لیکونکي ته ادا کړے شي۔

**د ـــ په ذریعه** :-د ویلیو پې ایبل پارسل په ذریعه۔

**ویېدل** :- (و+یې+د+ل)(مص) پرله پسې خبرې کول، ډېرې خبرې کول ۔ وئیل کول ، خبرل کول ، ګفتار کول ، تقریر کول۔

**ویېدلے** :- (و+یې+د+لے)(پ تر ، اس ، مف ، ج ــ لي) هغه چې په خبرو کړے شوے وي۔ په ګفتار راوستے (شوے)۔

**ویېدنه** :- (و + یې + د + نَ)(حمص) پرله پسې خبرې کونه ، ډېرې زیاتې خبرې کونه ، خبرې کونه ، ګفتار کونه ، تقریر کونه۔

**وېیل** :- (وې + ئ + ل)(و ــ ویل)۔

**ـــ کېدل** :- وېل کېد ، وېلې کېدل۔

**وې ئې** :- (وے + ئې)(جمله) وئیل ئې ، هغه وې۔

**وېینه** :- (وې + ئ + نَ)(اس ، مو ، ج ــ نې) وېنا ، حکم ، امر۔

**وېیه** :- (وے + ئَ)(اس ، ج) وئیل ، وینا ، امر ، حکم۔

**ویئ** :- (و + ي + ئ)(اس ، مو) یو قسم غرئیز بوټے دے چې نارونه ئې خوړے شي۔

**ویي** :- (و + یي)(فعل) د ,,وائي،، لنډ شکل دے۔

**ویے** :- (و + یے)(اس ، مذ ، ج ــ یي) خبره ، وېنا ، کلمه ، ګفتار ، کفت۔

یــو ویے دې دلاسا راتــه پرې نهٔ ږدي

ځان که هر څو خپل مئین ته مرور کړم (خوشحال)

# هـ

**هـ** :- ( هې ) د پښتو د حروف تهجي څلويښتم د عربي اوويشتم ، د فارسي يو دېرشم ، د هندي دري دېرشم او د اردو څلور دېرشم حرف .د ابجد په حساب ئې پينځۀ عدده مقرر دي.
**هـ** :- ( هـ ) حرف ، د هجري کال علامت لکه سن ۱۳۰۰هـ
**ه** :- ( هائے منحتفي ) ( ه ) چې واضحه نشي وئيلې .لکه لمبه ، سړه
**ه** :- ( هائے ملفوظي ) هغه هې چې ازاده وئيلې شي لکه د مثال په توګه : لـه کوره و تړه ، وغيره (ه) علامت تانيث : لکه هغه تله ، هغه ووته وغيره.
**ها** :-( ها ) ( اسم ،واحد ،مونث ) اګې ، تخم ، کلمه تاسف ، افسوس
**ها** :-( ها )د هغه مخفف ، لکه ها خوا (هغه طرف ) ، ها سړے ( آ سړے ) عاميانه.
**ها** :-د خبرداري لکمه ، لکه : ها ګوره چې راتېر نۀ شې.
**هابيل** :- د حضرت آدم عليه السلام زوے کوم چې خپل ورور قابيـل قتـل کړے وو
**هاپه** :-( ها + په ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) اپه ، هپه ، حمله ، يلغار ، چپاؤ ، شبخون
**هاتف** :-( ها + تف ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) غيبي آواز ، فرشته ، د غيب اواز ورکونکې فرښته.
**هاتنه** :- ( ها + تۀ + نه ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) د هـاتي مؤنث ، د هـاتي ماده.
**هاتی** :- ( ها + تی ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) خړتم لرونکے يو مشـهور ځناور ، جمع : هاتيان.
**هاتي وان** :- ( ها + تي + وان ) ( اسم ، واحد ،مذکر ) په هـاتي بانـدې کـار کوونکے ، هاتي وانان.وګورئ اتيوان.
**هاټ** :-( ها+ټ ) ( اسم،واحد ،مذکر ) اټې ، هټې ، دکان ، هټ.
**هاجي** :- ( ها + جي ) اسم نقل کوونکے ، هجو کوونکے.
**هادي** :-( ها + دي ) اسم صفت هدايت کوونکے ، پېشوا .
**هار** :- ( هـ + ا + ر ) ( اسم ) ازمائښت ، ازمېښت
**هار** :-( هـ + ا + ر ) (اسم) ( واحد ، مذکر ) د غـاړې امېـل چې قيمتي کـاڼي په کښې پيللي وي. د ګلونو ګول لړۍ چې په غاړه کښې اچولے شي.
**هارب** :-( هـ + ا+ر+ب ) ( ع،صف ) تښتيدونکے ، ( بهاګنے والا )
**هـاربر** :- ( انګ ، مـذکر ) بنـدرګاه .د سمندر د غـاړې هغـه ځـاے چې جهازونه پرې اودرېږي.
**هارت** :-( ها+ر+ت ) ( مذ ،اسم،صفت ) ارت و د ارت قرات ، فراخه
**هارتول** :- ( ها + ر + ت + و + ل ) ( مصدر متعدي ) وګورئ ارتول سره د لوازماتو.
**هارتېدل** :- ( ها + ر + تېدل )( مص ، لا)ارتېدل ، فراخه کېدل.
**هارل** :-( ها + ر + ل ) ( مصدر متعدي ) بائيلل ، تاوان کول.ج
**هارلے** :-( هـا + ر + ل + ے )( صـفت ، جمـع ) هـارلې ، مؤنث هـارلې ، وګورئ : هارل.
**هارن** :-( ها ، ر + ن ) حاصل مصدر ، وګورئ هارل ،
**هارن** :-( ها + ر+ ن ) ( حاصل مصدر ) وګورئ هارل .اسم واحد ، مذکر ، په بسـونو ، لارو مـوټرو وغيره کښـې لګيـدلې يـوه آلـه چې د مخـالف د خبرداري کار ترې اخستے شي.
**هارنګ** :- ( ها + ر + نګ )( حاصل مصدر ) وګورئ هارل.
**هارنه** :-( ها + ر + نه ) ( حاصل مصدر ) وګورئ هارل.
**هارون** :- ( ها + ر + ن )( صفت) هغـه اس چې پښـه ئې ګوډه وي .ع ، مذ : وران او سرکشه اس ، حضرت موسیٰ عليه السلام د ورور نوم . سردار ، د قوم سپه سالار .د عباسي خليفه نوم (هارون الرشيد)
**هاړ** :-( ها + ړ ) ( اسم ، مذکر ) اړ ، ها ړ ، د سختې ګرمۍ موسم د بکرمۍ کال مياشت چې له جيټ نه پس او پشکال نه مخکښې وي.
**هاړه هوړه** :- ( هـا + ړ + ه + هو + ړ + ه ) ( مؤنث ) شور شغرب ، زوږ زوږ، ډغ ډوغ.الغاؤ تلغاؤ.
**هاړې هوړې** :- ( ها + ړ + ې + هـ + و + ړې ) ( مؤنث ) منت زاري ، شور و غوغا ، چاپلوسي.
**هاسې** :- ( ها+سې ) حرف تشبيه / متعلق فعل ،هاغسې ، هسې
**هاضم** :( ها+ض+م )( اسم ، فاعل ، واحد ، مذکر ) هضم کوونکے
**هاضمه** :- ( ها + ض + مه ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) معده ، د هضمولو آلـه ، هضمه.
**هاغسې** :- ( ها + غ + س + ې ) حرف تشبيه. هغه شان ، هغسې.
**هاغومره** :-( ها+غو+م+ر+ه ) متعلق فعل ، د هغه هومره مخفف
**هاغه** :-( ها + غه ) ضمير ، هغه ، اغه
**هاکر** :-( ها + کر ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) اخبار خرڅونکے ، جمع هاکران.
**هاکي** :- ( ها + کي ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) يـوه مشـهوره لوبـه .هغـه لـرګے چې دا لوبه پرې کولے شي.
**هاګی** :- ( ها + ګی )( اسم ، مؤنث ) ها ،اګې،د چرګو تخم ،جمع : هاګۍ.
**هال** :- ( ها + ل )( اسم ،واحد ، مذکر ) تـالار ، هغـه لويـه کمره چې غونډې (اجلاسونه ) په کښې کېږي.جمع هالونه.(م.انګريزي).
**هالته** :- ( ها + ل + ته ) متعلق فعل ،هغه ځاے کښې ، هلته.
**هالک** :- ( ها + لک )( مذکر ، هلک )( د هلک يو قرات ).
**هالکينه** :- ( ها + له + کي + نه )( اسم) هلکوانه ، هلکتوب.
**هاله** :- ( ها + لۀ )(متعلق فعل) هله ، هغه وخت ، نو بيا .
**هاله** :- ( ها + له )( اسم ، واحد ، مؤنث ) ګول ، خلقـه ، شپـول ، د سپوږمۍ ، کنډول ، چورلنده.
**هالۀ** :- ( ها + لۀ ) هغه وخت ، پـه هـم هغـه وخت.چې زۀ هلتـه ووم نـو ورور

دې هاله راغلے وۀ.

**هالي** :-( ها + لي )( متعلق فعل ) دې ځاے کښې ، دلته.

**هامره** :- ( هام + ره )(متعلق فعل) هومره ، ( عاميانه ).

**هامون** :- ( ها + مو ن )( اسم ، مذکر ) بيابان ، صحرا ،ميدان ،دشت (شاعرئ کښې استعمالېږي ).

**هان** :- ( ها + ن )(حرف) هاؤ ، د ځواب کلمه.

**هاند** :- ( ها ند )(مذکر) درک ، وس ، کوښښ ،زيار،جدوجهد ،پوله،حد.

**هانده** :- ( هان + ده )( مذکر ) خوا ، طرف ، تل د لۀ سره راځئ.

**هاندے** :- ( هان + دے )( صفت ، مذکر ) کوښښ کونکے ،همت کونکے.

**هانډيوال** :-( ها + ن + ډي + وال )( اسم ، واحد ، مذکر ) په خوراک ځښاک کښې شريک يو ځاے خوړلو ځښلو والا. ملګرے ، وګورئ انډيوال.

**هانډيواله** :- ( ها + ن + ډ ي + واله )( اسم ، واحد ، مؤنث ) انډيواله ، د هانډيوال مؤنث ، وګورئ هانډيوال.

**هانډيوالي** :- ( هان +ډي + والی )( اسم ،واحد ،مؤنث ) د خوراک ځښاک ملګرتيا ، انډيوالی.

**هانډئ** :- ( هان + دی )( اسم ، واحد ، مؤنث ) د اخلي پخلي خاورين لوښے ، کټوی.

**هاؤ** :- ( هاؤ )( اسم ، صوت ) د غوا غوئي وغېره د شړلو اواز. د حکمه ( اشارت ).

**هاوند** :- ( ها+ وند )( صفت ، مذکر ) خواري کښ ، زيارين.

**هاويه** :-( ها + و + يه )( اسم ،واحد ، مؤنث ) ژوره کنده ، غرته کنده ، هغه ښځه چې اولاد ئې مړ شوے وي.

**هاها** :-( ها + ها ) د خوشحالی کلمه ، په زوره د خندا اواز.

**ها هو** :- ( ها + هو ) کلمه انبساط ، شور و شر ، ډېر شور شور زوږ ، اسمان په سر اخستۀ. چغ چوغ ، شور شغرب.

**ها هولے** :- ( ها + هو + لے )( مذکر ) ډېر ناز کونه ، غمزې ، ناز نخرې ، نخرې کونه

**هائي** :- ( هائي )( اسم صوت ) د درد و غم په وخت کښې د خولې وتونکے اواز ، وئ وائي ، هئ ، وش.

**هائي پيټ** :- ( ها + ئي + پيټ )( مذکر ) د خفګان ژړا انګولا ، ساندې ، نارې سورې ، چغې چغارې.

**هائ کوئ** :- ( ها+ئ+کو + ئ )( اسم ، مذکر ) هئ کوئ ، ويرياټ ، ژړا انګولا ، ساندې ، نازې سورې ، چغې چغارې.

**هائي وائي** :-( ها + ئي + وا+ئي )( اسم ، مؤنث ) چغې چغارې ، وير انګولا ، ويرياټ ، هئ چئ.

**هاوان** :- ( ها + وا + ن ) نرم ، يو ډول حربي توپ.

**هبا** :- ( هَ+با )( اسم ،مذکر ) ميراث ،ترکه. جمع : هباګان / هبان.

**هبات** :- ( هـ+با+ت )( اسم،جمع ،مذکر ) تحفې،هديې،بخششونه.

**هبته** :-( هه +ب + ته )( اسم ، صفت ) خراب ،عبث ، بې کار ، فضول ، حبطه، لړلے ، ضائع ، ( د حبط مفغن ).

**هبته والے** :- ( هه + به + ته + وا+ لے )(اسم ) خرابېدنه ، عبث کېدنه ، حبطه کېدنه ، ابته کېدنه.

**هب دپ** :- ( هب + دپ )(اسم) تېرونه ، خوړنه.

**ـــ کول** :- هپ کول ، خوړل ، تېرول.

**هبې** :- ( هه + بې )( اسم ، صفت ) داخل ، ننوتے.

**هبل** :- ( هه + ب + ل )( ع ، مذکر ) د يو مشهور بت نوم کوم چې د جهالت په زمانه کښې په مکه مکرمه کښې ايښودے شوے وو.

**هبوط** :- ( هه + بو+ط )( ع ، مذ ) نازلېدل ، لاندې راکوزېدل ، پستي نشېب ، ښکته کېدل.

**هبه** :- ( هه + به )( اسم ،واحد ،مؤنث ) خېرات،سپارنه،صدنه،بخشش عطاکونه.

**هبه ډبه** :- ( هه+به+ډ+به )( اسم ،واحد ،مؤنث ) توره تپوخلې ، پوخلې ، توره پوخلې. هغه تپوخے چې دائمي وي. د ساړۀ تبه.

**هبه نامه** :- ( هه + به + نا + مه )( اسم ، واحد ، مؤنث ) هغه دستاويز چې هبه پرې ورکړے کېږي. جمع : هبه نامې.

**هپ** :- ( هپ )( اسم ، واحد ،مذکر ) په يوه پېره تېرونه. په يو ځل له ستوني تېرونه. د ورو په ژبه هپ کونه ، خوړنه ، خواهش او هوس.

**هپته** :-( هپ + ته )(متعلق فعل) لړې ، شاته ، غاړې ته.

**هپه** :- ( هه + په )( اسم ، واحد ،مؤنث ) چاپسې په جمع وتنه ، د چا خلاف پورته کېدنه ، د حملې په توګه د ګڼو کسانو تلنه ، حمله ، چپاؤ ، چا سره په کمک تلنه ، روزخون.

**هپه دپه** :- ( هه + په + د + په )( اسم ، مؤنث ) منډه تړره ، کوښښ ، حرکت.

**هتک** :- ( هه + تک )( اسم،مذکر ) بې عزتی ، د چا په شان کښې ګستاخي کونه ، د چا توهين کونه رسوائي ، بې حرمتي.

**هتنه** :-( هه + تۀ + نه )( اسم،واحد ،مؤنث ) د هاتي ماده ، جمع: هتنی.

**هتوړی** :- ( هه+تو+ړی )( اسم ،مؤنث ) اتکړی ،اتوړی ،هتکړی.

**هته** :- ( هه + ته )( اسم ، واحد ، مؤنث ) ځنګل ، لېچه.

**هتی** :- ( هه + تی )( اسم ، واحد ، مذکر ) فيل ،يو خداے خړتم لرونکے ځناور ، هاتي ، جمع: هاتيان.

**هتيات** :- ( هت+يات )( اسم،مذکر ) ډېره پوهه ، زيرکي ، احتياط.

**هتياتی** :-( هت + يا + تی )( صفت ) ځيرک ، باريک بين ، احتياطي ، احتياط کونکے.

**هتيار** :- ( هت + يا + ر )( اسم ،جمع ،مذکر ) وسله ، اسلحه ، د جنګ سامان.

**هټ** :- ( هټ )( اسم،واحد ،مذکر ) هټی ، دوکان ، ضد ، اړې کونه ، صفت ، بې کاره ، کوښښ ، خواري.

**هټيال** :- ( هه + ټ + يال )( صفت ) ايسار شوے ، اټال ، ايسار. (اسم) يو قسم زهر ، هړتال.

**هټالول** :- ( هه + ټه + له + ول ) مصدر متعدي ، اټالول ، ايسارول.

**هټالېدل** :- ( هه + ټا + لې + دل ) مصدر لازم ، ايسارېدل ، اټالېدل.

**هټکل** :- ( هټ + کل )( اسم،واحد ،مذکر ) اټکل ، طريقه ، چل.

**هټکېدل** :- ( هټ + کې + دل )(مصدر لازم ) ايسارېدل ، اټالېدل.

**هټکېدلے** :- ( هټ + کې + دۀ + لے )( اسم ، مفعول) جمع : هټکېدلي. مؤنث : هټکېدلې. (وګورئ هټکېدل).

**هټکېدن** :- ( هټ + کې + دن )( حاصل مصدر )( و ـــ هټکېدل ).

**هټکېدنګ** :- ( هټ+کې+دنګ )(حاصل مصدر)( و ـــ هټکېدل ).

**هټکېدنه** :- ( هټ + کې + دنه )(حاصل مصدر )( و ـ هټکېدل ).

**هټکېدونکے** :- ( هټ +کې + دون + کے )( اسم،فاعل،واحد،مذکر ) ( و ـــ هټکېدل )

**هټکېدۀ** :- ( هټ + کې + دۀ ) حاصل مصدر او د ماضي استمراي د واحد غائب صيغه. ( و ـــ هټکېدل ).

**هټکی** :- ( هټ : کي )( مؤ : ايټکی ) اُردو : هچکی.

**هټول** :- ( هه + ټه + ول )( مصدر ،معدي )( و ـــ رد کول ).

**هټولے** :- ( هه + ټه+ وۀ + لے )( صفت ، مفعول ) جمع هټولي. مؤنث : هټولې

(وګورئ : هتول) .
**هتون** :- (هه + ته + ون) (حاصل ، مصدر) (و ـــ هتول) .
**هتونکے** :- (هه + ته + وون + کے) فاعل ، جمع : هتونکي . مؤنث : هتونکې (و ـــ هتول) .
**هتونګ** :- (هه + ته + ونګ) (حاصل مصدر) (و ـــ هتول) .
**هتونه** :- (هه + ته + وۀ + نه) (حاصل مصدر) (و ـــ هتول) .
**هته** :- (هه + ته) (اسم ، واحد ، مؤنث) لېن دېن ، معامله .
**هتي وال** :- (هه + تي + وال) (اسم ، واحد ، مذکر) دکاندار ، دوکاندار .
**هتېدل** :- (هه + تي + دل) مصدر لازم ، رد کېدل .
**هتېدن** :- (هه + تي + دن) (حاصل مصدر) (و ـــ هتېدل) .
**هتېدنګ** :- (هه + تي + دنګ) (حاصل ، مصدر) (و ـــ هتېدل) .
**هتېدنه** :- (هه + تي + دۀ + نه) (حاصل مصدر) (و ـــ هتېدل) .
**هتېدونکے** :- (هه + تې + دون + کے) (اسم ، فاعل) جمع : هتېدونکي ، مؤنث : هتېدونکې . (و ـــ هتېدل) .
**هتېدۀ** :- (هه + تې + دۀ) (حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه) (و ـــ هتېدل) .
**هتۍ** :- (هه + تۍ) (اسم ، واحد ، جمع ، مؤنث) دوکان ، اټۍ ، د هټ اسم تصغير .
**هتي وال** :- (هه + تي + وال) دوکاندار ، هټي وان .
**هجا** :- (هې + جا) (اسم ، واحد ، مؤنث) حرف له اعراب نه ظاهرونه ، بيزي کونه ، هڅه .
**هجر** :- (هـ + جر) (اسم ، واحد ، مذکر) بېلتون ، فرقت ، هجران ، جدائي فراق ، (م ـــ عربي) .
**هجران** :- (هج + را + ن) (اسم ، واحد ، مذکر) (وګورئ هجر) (م ـــ عربي)
**هجرت** :- (هج + رت) (اسم ، واحد ، مذکر) وطن پرېښودنه ، له يو ځاے نه بل ځاے ته تلنه ، (م ـــ عربي) .
**هجره** :- (هج + ره) (مؤنث) حجره ، د پښتنو د مېلمنو ځاے .
**هجري** :- (هج + ري) (اسم ، صفت) هجرت سره منسوب هغه کال چې د حضور صلي الله عليه وسلم دمکې نه مدينې ته د هجرت کولو سره سم شروع کېږي
**هجرے** :- هج + رے) (صفت) ناراست ، سُست ، کاهل .
**هجړا** : (هج + ړا) (صفت) هجړي ، هجړے ، ايجړا ، ښځونک نامرد ، نر ښځے ، جمع : هجړاګان .
**هجړۍ** :- (هج + ړۍ) (صفت) (و ـــ هجړا) .
**هجړے** :- (هج + ړے) (صفت) (و ـــ هجړا) .
**هجګۍ** :- (هج + ګۍ) (اسم ، واحد ، مؤنث) د هجې سره لُستنه .
**هجو** :- (هج ، وۀ) (اسم ، واحد ، مؤنث) د شاعرۍ په اصطلاح کښې د چا سپکاوے بيانونه ، د چا مذمت کونه .
**هجوم** :- (هو + جوم) (اسم ، مذکر) اشر نشر ، ګڼه ګوڼه .
**هجه** :- (و + جه) (اسم ، واحد ، مؤنث) هڅه ، په ټکو وئينه .
**هڅه** :- (هه + څه) (اسم ، واحد ، مؤنث) طمع ، اميد ، لټون ، درک ، شوق هوس ـ خواهش ، اشتياق ، تلوسه ، ارزو ، طلب ، خوښه ، حمله ، بلوسه ، اسم صوت : د بيړي شړنه .
**هخامنشي** :- د قديم ايران د يو خاندان نوم دے ـ چې په کښې کوروش اعظم د ټولو خداے باچا تېر شوے دے .
**هدايا** :- (هه + دا + يا) (اسم ، جمع ، مذکر) صدقې ، تحفې ، هديې ، د هديه جمع

**هدايت** : (ه + دا + يت) (اسم ، واحد ، مذکر) رهنمائي ، لار ښودنه ، جمع هدايات (م ـــ عربي) .
**هدف** :- (هه + دف) (اسم ، واحد ، مذکر) ګلځړۍ ، نښه ، نشانه ، نخښه .
**هُد هُد** :- (هُد + هُد) (اسم ، واحد ، مذکر) يوه مشهوره مرغۍ چې په سر ئې تاج وي ـ بدبرک ، ملاچرګګ ـ ګوډي چرګ . (م ـــ عربي) .
**هديره** :- (هه + دي + ره) (اسم ، واحد ، مؤنث) قبرستان ، مقبره ، اديره ، مړيستون ـ جمع : هديرې .
**هديه** :- (هد + يه) (اسم ، واحد ، مؤنث) ډالۍ ، نذرانه ، سوغات ، تحفه ، قيمت ، بيعه .
**هډ** :- (هډ) (اسم ، واحد ، مذکر) هډوکے ، اډوکے ، اصالت ، شرافت ، جمع : هډوکي .
**هډبند** :- (هډ + بند) (اسم ، صف ، واحد ، مذکر) هډوکۍ تړونکے ، جمع هډبندان .
**هډبندي** :- (هډ + بن + دي) (اسم ، واحد ، مؤنث) هډوکي تړنه .
**هَډ تَـړ** :- (هډ + تړ) (اسم ، واحد ، مذکر) د هډوکۍ د تړلو دپاره پکارونکې پټۍ
**هَډ کپ** :- (هډ + کپ) (اسم ، واحد ، مذکر) (و ـــ هډوکپ) .
**هډ ګوډ** :- (هډ + ګوډ) (اسم ، واحد ، مذکر) ګوډ ، د هډ تابع مهمل ، ټول هډوکي هراندام .
**هډماتۍ** :- (هډ + ما + تۍ) (اسم ، واحد ، مؤنث) دښمني ، تربګني ، هغه يخني چې اثر ئې تر هډوکي پورې وي .
**هډماتے** :- (هډ + ما + تے) (اسم ، واحد ، مذکر) دښمن ، چې هډوکے ئې مات وي
**هډ مرغه** :- (هډ + مر غه) (اسم ، صفت) طاقتور ، کوټلے وجود لرونکے ، هډور .
**هډو** :- (هه + ډو) (متعلق فعل) اسم صفت ، بالکل ، چېرې ، هرګز ، قطعي ، يره خو
**هډو** :- (هه + ډو) (اسم ، صفت) غټ وجود لرونکے ، هډور ، هډواله .
**هډواله** :- (هډ + وا + له) (اسم صفت) (و ـــ هډو) .
**هډور** :- (هه + ډه + ور) (اسم ، صفت) طاقتور ، مضبوط ، هغه انسان يا حيوان چې غټ او مضبوط هډونه لري ـ هډو .
**هډوکپ** :- (هه + ډو + کپ) (اسم ، واحد ، مذکر) ټوکيا ، ټوکا ، قيمه کش ، هډ کپ
**هډوکے** :- (هه + ډو + کے) (اسم ، واحد ، مذکر) د حيواني جسمونو هغه سخته حصه چې وجود پرې اډانه لري . يو سخت شيز چې په وجود کښې وي ـ جمع : هډوکي ، اډوکے . (م ـــ هندي) .
**هډونه** :- (هه + ډو + نه) (اسم ، جمع ، مذکر) د هډ جمع ، هډوکي ، غټ هډوکي ، بدن ، وجود .
**هډه** :- (هه + ډه) (اسم ، واحد ، مؤنث) د لاريو موټرو د ودرېدو ځاے / ځائيګے ، اډه . تکيه ، د اړخ شا لګولو ځاے ، جمع هډې .
**هډۍ** :- (هه + ډۍ) (اسم ، جمع ، مذکر) د يوې لويې نوم چې وړو وړو ډکو سره کېږي . د مرۍ يوه بيماري ، بغوټي ، مغوټي ګلې .
**هذا** :- (ع) اسم اشاره ـ په .
**هذيان** :- (هذ + يا + ن) (اسم ، جمع ، مذکر) د سختې بيمارۍ په وخت له خولې وتونکې ګډې وډې خبرې ، اوتې بوتې . (م ـــ عربي) .
**هر** :- (هر) (اسم ، صفت) هر هغه ، هر څۀ ، هر څوک ، ټول ، تمام ، يو يو ، يو سر په ټوله ، حدف ، د تعصب ، ويرې . د کرکې په وخت د خولې نه

وځې شور، غوغا.

**هر** :- (ف) ایک ایک، تمام ټول، هره لمحه، هره ګهړی.

**هرات** :- افغانستان د یو مشهور ښار نوم دے.

**هراس** :-(هه+راس)(اسم،واحد،مذکر) یره، خوف.(م ــ فارسي).

**هراسان**:- (هه + را + سان)(صفت) تریدلے، نا امید، خوف زده، ویریدلے.

(م ــ فارسي).

**هراسم** :- (هه + را + سم)(اسم، واحد، مذکر) ویره ترهه، هراس (فارسي).

**هراند** :- (هه + راند)(صفت) بزدله، یرندونکے، ډرپوک.

**هراندوالے** :- (هه+راند+وا+لے)(اسم مذکر) بزدلي، ډرپوک توب.

**هراندول** :- (هه+ران+د+ول) مصدرمتعدي ،ویرول، یرول، ډرول.

**هراندونکے** :-(هه + ران + د + وون + کے)(اسم، فاعل، صفت ،واحد مذکر) جمع: هراندونکي. مؤنث: هراندونکې.(و ــ هراندول).

**هراندونه** :- (هه+ران+ د + وۀ+ نه)(حاصل مصدر)(و ــ هراندول).

**هراندېدل** :- (هه + ران + دې + دل) مصدر لازم، تریدل، ویرېدل، ډرېدل.

**هراندېدنه** :- (هه + ران + دې + دۀ + نه)(حاصل مصدر)(و ــ هراندېدل).

**هراندېدونکے** :- (هه + ران+ دې+دون+کے)(اسم فاعل، واحد،مذکر) جمع: هراندېدونکي. مؤنث: هراندېدونکې.(و ــ هراندېدل).

**هراندېدۀ** :- (هه + ران + دې + دۀ) حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه.(و ــ هراندېدل).

**هرانږ** :- (هه + رانږ)(اسم،صفت) پرېشان، سرګردان.

**هراول** :- (هه + را + ول)(اسم،واحد،مذکر) د فوځ وړومبۍ جنګېدونکې دسته (م ــ ترکي).

**هرت** :- (هرت)(صفت) ارت، هارت، واز، مؤنث: هرته.

**هرتال** :- (هر + تال)(اسم، واحد، مذکر)( و ــ هړتال. یو قسمه دهات چې زیړ رنګ وي.

**هرج** :- (هَرَجْ)(اسم، واحد، مذکر) شور و شر، درز غوبل، خلل، وقفه نقصان.(م ــ فارسي).

**هرجانه** :- (هر + جا + نه)(اسم، واحد، مذکر) تاوان.(فارسي).

**هرجائي** :- (هر + جا + ئي)(صفت) هرچاګے، بې وفا، هر درے.

**هرچا** :- (هر + چا)(صفت)، هر یو، ټولو.

**هر چېرته** :- (هر + چر + ته)(متعلق فعل) هر ځاے.

**هرچند** :- (هر+چند)(متعلق فعل) هر څو، هر څومره، څومره چې.

**هرڅنګې** :- (هر + څنګ + ړې) متعلق فعل ،هرڅنګه ،هر رنګه ،هرشان.

**هر څو** :- (هر+څو)(متعلق فعل) هرچې ،څنګه چې،هرڅل ،هرچند.

**هر څوک** :- (هر + څوک)(متعلق فعل) هر یو کس، هر یو.

**هر څومره** :- (هر + څوم + ره)(متعلق فعل)(وګورئ: څۀ قدر، هر څو چې، هر څو ته).

**هرڅونه** :-(هر + څو نه)(متعلق فعل)(و ــ هر څومره).

**هر څۀ** :- (هر + څۀ)(صفت) ټول، تمام، کل واړه، څۀ چې موجود وي.

**هرخه برخه** :- (هر + خه + بر + خه)(متعلق فعل) د لور خور دپاره برخه، حصه.

**هر درے** :- (هر + د + رے)(صفت، واحد، مذکر) چې د هر در وي. اواره، هر جائي، جمع: هردری.

**هر دم خبر** :- (هر + دم + خبر)(کلمه) د خبر دعا، اردم خبر.

**هر رنګه** :- (هر + رنګ + ګه)(متعلق فعل) هر څنګه، په هر رنګ چې وي، په هره طریقه.

**هر ړے** :- (هر + ړے)(اسم، واحد، مذکر) د ګڼ یو قسم چې تاؤ راتاؤ، ښکرونه لري، اړړے.

**هر زه** :- (هر + زه)(اسم، واحد، مؤنث) چې فضول خبرې کوي. لوفر، فضول بې هوده.(م ــ فارسي).

**هرزه کار** :- (هر + زه + کار)(صفت ،هرزه ګو) بدکردار، بې هوده، ګناهګار.(م ــ فارسي).

**هرزه ګو** :- (هر+زه+ګو)(صفت) هرزه ګو، بد کردار، بې هوده، ګناهګار، فضول خبرې کونکے، هرزه کار.(فارسي).

**هرکاره** :- (هر + کا + ره)(اسم،واحد،مذکر) خرکار، چې په خرونو کاروبار کوي (افغانستان).

**هرکاره** :- (هر+کا+ره)(اسم،واحد، مذکر) مخبر،قاصد، فرائي پان، پري پان، (صفت) وړونکے، بارکښ، باربردار.

**هرکال** :- (هر + کال)(متعلق فعل) سالانه، کال په کال، کال د کال، کال د کاله.

**هرکدام** :- (هر + که + دام)(صفت) هر څوک، هر یو.(فارسي).

**هر کله** :- (هر + که + له)(اسم، احد، مذکر) هرکلے، پخېر راغلے، د مینې په طور وئیلے شي. متعلق فعل، هر وخت، مدام.

**هرکلے** :- (هر + که + لے)(اسم، واحد، مذکر) خبر مقدم، پخېر راغلے، جمع هرکلي.

**هرکے** :- (هر + کے)(اسم، واحد، مذکر) بغېر د څۀ وجې خندنه.

**هرګاه** :- (هر + ګاه)(متعلق فعل) کوم وخت، هر حال کښې چې څۀ وخت.(فارسي).

**هر ګجه** :- (هر + ګ + جه)(اسم،واحد،مذکر) ارګجه، ګډګاډېره، اړتم، خرتم، د ببل ببل ذات او قام قبیلې سره تړلي. داسې چې د یو نسل نۀ وي.

**هر ګز** :- (هر + ګز)(متعلق فعل) هیچېرې هم نه، هیڅکله هم نه، بالکل نه.

**هر ګوره** :- (هر + ګو + ره)(متعلق فعل) ضرور، یقیناً، اورمرو، خامخا، البته

**هرمز** :- (هر + مز)(اسم، واحد، مذکر) د ایراني شمسي میاشتې هره وړومبۍ ورځ چې په کښې سفر کول او نوې جامې اغوستل منحوس ګڼلے شي. د ایران د یو بادشاه نوم.

**هرنې** :- (هر + نې)(اسم، واحد، جمع، مؤنث) د څۀ څیز حاصلولو دپاره ډېره بې صبري، اشتیاق ،بې صبري، سخته تنده.(افغانستان).

**هر دار** :- (هر + دار)(متعلق فعل) هر ځل، هره پاره.

**هر وخت**:-(هر ، خت)(متعلق فعل) هر ساعت، هره ګړی.

**هروزي** :- (هه + رو + زي)(اسم،صفت) کوته، کم اصل، جعلي (افغانستان)

**هرومرو** :- (هه+رو+مه+رو)(متعلق فعل) ارو مرو،خامخا،ضرور.

**هره** :- (هه + ره)(مؤنث) د هر تانیث، هره یوه کلمه ندا، خرې یا خر ته د تلو حکم، د خرو شړلو اواز.

**هر هر** :- (هر + هر)(اسم، واحد، مذکر) یو بوټے او د هغې تخم، چې کچه او پوخ دواړه حالتونو کښې خوړلے شي او خشاک ئې سبزلو له پکارېږي. نباتاتي نوم: کجانس انډي کس-(Cajanus Indiccis).

**هر هر ګیټے** :- (هر + هر + ګي + ټے)(اسم، واحد، مذکر) د هلکانو د

يوې لوبې نوم ، جمع هر هر ګيټي.

**هرې** :- (هه + رې) حکمه ندا . د خرې د شړلو په وخت وئيلے شي.هره. صفت ، سخت ، ځيلې ، موډيالے

**هرپاسه** :- (هر + پا + سه) (اسم ، واحد ، مؤنث) د صفا شوې غلې ډېرې ، افغانستان.

**هريان** :- (هر + يان) (صفت) اريان ، حېران ، خفه ، زهير ، حيرت زده ، چې لاس ئې تنګ وي.محتاجه مُتازه.

**هريانه** :- (هر + يا + نه) (صفت) د هريان مؤنث ، هغه ښځه چې خاوند ئې ځان سره نۀ ساتي.

**هرياني** :- (هر+يا+ني) (اسم ، واحد ، مؤنث) حېراني ، پرېشان.

**هريږ** :- (هه + رېږ) (صفت) تريخ ، ترش ، تريو.

**هرېره** :- (هه + رې + ره) (اسم ، واحد ، مؤنث) د يوې دوائي نوم . حکيمي دارو .اريړه ، د پرتوغانې يا بل کوم غښتلي څيز هغه غوټه چې د هريړې په شکل وي.

**هرېړي** :- (هه+ رې + ړي) (اسم) هغه واړۀ واړۀ چنډې چې د ارټ لوټکي پرې د بياستې سره تړلي وي.

**هري کول** :- (هه+رې+ک + ول) (مصدر) بانه کول ، ټګي کول ، چلبازي کول

**هرېدل** :- (هه + رې + دل) (مصدر) هنګېدل ، هنېدل ، بې ځايه خندا کول

**هرېدلے** :- (هه + رې + دۀ + لے) (اسم ، مفعول) جمع : هرېدلي.مؤنث : هرېدلې (و ـــ هرېدل).

**هريدن** :- (هه + رې + دن) (حاصل مصدر) (و ـــ هرېدل).

**هريدنه** :- (هه + رې + دۀ + نه) (حاصل مصدر) (وګورئ : هرېدل).

**هريدونکے** :- (هه + رې + دون + کے) (اسم فاعل) جمع : هرېدونکي . مؤنث : هرېدونکې.(و ـــ هريدل).

**هريدۀ** :- (هه + رې + دۀ) (و ـــ هريدل).

**هري هري** :- (هه + رې + هه + رې) کلمه ندا . د خر شړلو اواز.

**هرې** :-(ه + رې) (اسم ، واحد ، جمع ، مؤنث) جنګ شور ، ايرې بارې ، بې هوده خبرې ، هيرې.

**پرنې** :- د يو څيز د حاصلولو دپاره ډېره بې خبري ، انتهائي ، اشتياق.

**پريو** :- (م ،ض) تريخ و تريو ، ترش ، د غصې نه ډک.

**هړ** :- (هړ) (اسم ، واحد ،مذکر) لکړ لرونکے ګډ .اړرے،هررےګډ.

**هړاند** :- (هه + ړاند) (صفت) ډېر مصروف ، اختـه ، اړم ، بوخت لګيا ، پرېشان ، ګېر.

**هړپه** :- (هړ+په) (اسم،واحد ،مؤنث) کونګ ،د سترګو کاسه ، جمع : هړپې

**هړپې** :-(هړ + پې) (اسم ،واحد ،مؤنث) هړپے ، صندوقچه ، وړوکے دبلے ، وړوکے ډبے.

**هړپے** :- (هړ + پے) (اسم ، واحد ، مذکر) (و ـــ هړپې).

**هړتال** :- (هړ + تال) (اسم) د صاحب اختيار خلاف د احتجاج په توګه د کار نه اجتماعي انکار ، د کاروبار مرکزونه احتجاجاً بندونه ، د دوکانونو وغېره بندونه ، يو زهريلا معدني مرکب چې دارو کښې هم پکارولے شي

**هټال** :-م ، هندي هري ، تال.

**هړو دوړ** :-(هړ + و + دوړ) (اسم ، واحد ، مذکر) هله ګله ، شور شغرب ، منډې تربې.

**هړيسه** :- (هه+ړي+سه) (صفت) ډېرخوړين شوے،ډېر يشبدلے.

**هزار** :- (هه + زار) (اسم) لس سوه ، زر، بلبل ،د موسيقۍ يوه الـه (فارسي) د ځناورو د ګېډې يوه حصه پتروزې ، پتروجې ، پتروځې ، پتوجري ، د لړې نرۍ حصه ، هزار خوانې.

**هزار خوانې** :- (هزار +خا+نې) (اسم،واحد ،جمع) (و ـــ هزار).

**هزار داستان** :- (هه + زار + داس + تان) (اسم) بلبله ،شاعرۍ کښې استعمالېدونکے ټکے.(م ـــ فارسي).

**هزاره** :- (هه + زا + ره) (اسم ، واحد ، مؤنث) سور ګل ، ججوے ،سور ګلے ، غبرګ ګل.

**هزال** :- (هه + زال + / هز + زال) (صفت) بکواسي ، بې هوده ګو ، ټوقمار.

**هزبر** :- (هز + بز) (اسم ، واحد ، مذکر) ببرشېر ، زمرے.(صفت) غټ خداے مضبوط ،

**هزج** :- (هه+زج) (اسم،واحد ، مذکر) په سُر وئيلے کېدونکے څيز، يو بحر چې مفاعيلين کښې شپږ ځله تکرارېږي.

**هزل** :- (هه + زل) (اسم ، واحد ، مذکر) ټوقې مسخرې ، ټوقې ټقالې .بې هودګي ، هزليات.

**هزيمت** :- (هه + زي + مت) (اسم،واحد ،مذکر) ازيمت ، مېدان ، پرېښودنه، ماتې ، شکست ، فرار ، تېښته.

**هسار** :- (ه+سار) (اسم ،صفت) د ايسارېو قرات ، اټال ، ايسار.

**هسارول** :- (ه + سا + ر + ؤل) (مصدر متعدي) ودرول ، ايسارول ، اټالول

**هساريدل** :- (ه + سا+رې + دل) (مصدر لازم) ودرېدل ، ايسارېدل ، قېدېدل.

**هسپتال** :- (هس + په + تال) (اسم ، واحد ، مذکر) اسپتال ، د علاج ځاے ، روغتون.

**هسپه** :- (هس + په) (اسم ، واحد ، مؤنث) اسپه ، د اس مؤنث

**هسپه بوټے** :- (هس + په + بُو + ټے) (اسم ،واحد ،مذکر) يو حکيمي بوټے چې د اسپې په علاج کښې پکارېږي.

**هست** :- (ه+س+ت) (اسم ، واحد ،مذکر) ژوند ،زيست . (صفت) د نيست تضاد . شتۀ والے.

**هستمند** :- (هست + مند) (اسم صفت) مالدار ،دولتمند .

**هستمندي** :- (هست + من + دي) (اسم،واحد،مؤنث) مالداري ، شتۀ مندي.

**هستوګنځے** :- (هس + تو + ګن + ځے) (اسم،واحد،مذکر) استوګنځے ، د اوسېدو ځاے.

**هستوګنه** :- (هس + توګ + نه) (اسم،مؤنث) اوسېدنه ، استوګنه.

**هستوګه** :- (هس + تو + ګه) (اسم،مؤنث) (و ـــ استوګه).

**هستول** :- (هس + ته + ول) (مصدر ،متعدي) جوړول ، ابادول.

**هسته** :-(هس + ته) (اسم اشاره) دېخوا ، ايشته ، دې طرف ته ، راپه دې خوا ، ايسته.

**هستي** :- (هس + تې) (اسم ، واحد ، مؤنث) وجود ، کائنات ،طاقت ، مال و متاع ، ذات.

**هستېدل** :- (هس + تې + دل) (مصدر لازم) ايسارېدل ، اوسېدل.

**هستېدن** :- (هس+تې+دن) (حاصل مصدر) (و ـ هستېدل).

**هستېدنګ** :-(هس+تې+دنګ) (حاصل مصدر) (و ـ هستېدل).

**هستيدنه** :- (هـ + تې + دۀ + نه) (حاصل مصدر) (و ـ هستېدل).

**هستېدونکے** :-(هس + تې + دون + کے) (اسم ، فاعل) اوسېدونکے . د مرتبې خاوند .

**هستېدۀ** :- (هس + تې + دۀ) (حاصل مصدر او د ماضي استمراري د

واحد غائب صیغه ) ( و ـــ هستېدل ) ـ

**هسک** :- ( هسک ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) قرعه ، پچه ـ

**هسک** :- ( هسک ) ( اسم صفت ) اوچت ، لوړ ، اسمان ـ

**هسکتوب** :- ( هسک + توب ) ( اسم ، مذکر ) ( و ـــ هسک والے ) ـ

**هسکتیا** :- ( هسک + تیا ) ( اسم ، مؤنث ) ( و ـــ هسک والے ) ـ

**هسک والے** :- ( هسک ، وا + لے ) ( اسم ، مذکر ) لوړتیا ، اوچتوالے ، لوړ والے ، عظمت ـ

**هسکول** :- ( هس+ که + ول ) ( مصدر متعدي ) لویول ، اوچتول ،شاربل ، لړل ، حېرانول ، سرګردانول ـ پرېشان کول،خسنے اچول ، قرعه اندازي کول ـ

**هسکون** :- ( هس + که + ون ) ( حاصل مصدر ) ( و ـــ هسکول ) ـ

**هسکونکے** :- ( هس + که + وون +کے ) ( فاعل) جمع : هسکونکي ـ ( و ـــ هسکول )

**هسکونګ** :- ( هس + که + ونګ ) ( و ـــ هسکول ) ـ

**هسکونه** :- ( هس + که + وۀ + نه ) ( و ـــ هسکول ) ـ

**هسکه** :- ( هس + که ) ( اسم ، صفت ، مؤنث ) د هسک مؤنث ـ

**هسکېدل** :- ( هس + کې + دل ) ( مصدر لازم ) لوئېدل ، اوچتېدل ، لوړېدل ـ

**هسکېدلے** :- ( هس+کې+دۀ+لے ) ( اسم ،مفعول ) ( و ـــ هسکېدل ) ـ

**هسکېدن** :- ( هس + کې+دن ) ( حاصل مصدر ) ( و ـــ هسکېدل ) ـ

**هسکېدنه** :- ( هس+کې+دۀ+نه ) ( حاصل مصدر ) ( و ـ هسکېدل ) ـ

**هسکېدونکے** :- ( هس + کې + دون + کے ) ( اسم ، فاعل ، واحد مذکر ) ( و ـــ هسکېدل ) ـ

**هسکېدۀ** :- ( هس + کې + دۀ ) ( حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه ) ( و ـــ هسکېدل ) ـ

**هسګ** :- ( هسګ ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) مرغي ځاله ـ

**هسې** :- ( هه + سې ) ( اسم ، صفت ، متعلق فعل ) بې فائده ، مفت ، هم هسې ، (متعلق فعل) لکه ، شان ، په شان، داسې ـ

**هش** :-( هش ) ( اسم ، صوت ) ، هُوش ، د سپي په چا د حملې کولو ته اماده کولو اواز ، نیسه ـ

**هشاش** :- ( هش + شاش ) ( اسم ، صفت ) خوشحاله ، شادان ، تازه ، هشاش بشاش ـ

**هشاش بشاش** :-( هش + شاش+ بش + شاش ) ( و ـــ خشاش ) ـ

**هشت ګُشت** :- ( هشت + ګُشت ) ( اسم،واحد ،مذکر ) نسل ، اتۀ پښته ، مشران

**هشتوالے** :-( هشت + وا + لے ) ( اسم) هستي ، وجود ـ هستوالے ـ

**هشت و مشت** :-( هشت + و + مشت ) ( اسم ،مذکر) شور ماشور ـ غوغا ، هله ګله

**هشګوني** :- ( هش + ګو + نے ) ( اسم ، صف) تریخ ، سخت مزاج ، تېز مزاج ، سخت طبیعت لرونکے ـ

**هشه** :- ( هه + شه ) ( کلمه ندا ) د خرې د شړلو اواز یا کلمه ، هرې خرې ـ

**هښ** :- ( هښ ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) اوښ ـ

**هښمه** :-( هښ + مه ) ( اسم،واحد ،مؤنث ) د برېښنا سره سمه توره وریځ خوربدنه ، د باران شپه ـ

**هښیار** :- ( هښ+یار ) ( اسم ،صفت، مذکر ) هوښیار ، عقلمند ، پوه ، دانا ، زیرک

**هضم** :- ( هه + ضم ) ( اسم صفت ) معده کښې د خوراک په وینه کښې د بدلېدو حالت ـ (اسم، صفت) حل شوے ، خوړلے شوے ـ

**هضمول** :- ( هض+مه +ول ) ( مصدر ،متعدي ) هضم کول ، خوړل ، خوراک کول ، خوراک په خولۀ چیچولو نه پس خیټې ته تېرول ـ پردے مال غصب کول ، د چا حق خوړل ـ

**هضمونکے** :- ( هض + مه + وون + کے ) ( اسم ،فاعل،واحد ،مذکر) جمع: هضمونکي ) ( و ـــ هضمول ) ـ

**هضمونه** :- ( هض+مه+وۀ+نه ) ( حاصل مصدر ) ( وګورئ ـ هضمول ) ـ

**هضمېدل** :- ( هض + مې + دل ) ( مصدر لازم ) هضم کېدل ، د خوراک د وینې حصه جوړېدل ـ حرام مال خوړل ـ

**هضمېدن** :- ( هض+مې+دن ) ( حاصل مصدر ) ( و ـــ هضمېدل ) ـ

**هضمېدنه** :- ( هض+مې+دۀ+نه ) ( حاصل مصدر ) ( و ـ هضمېدل ) ـ

**هضمېدونکے** :- ( هض + مې + دون + کے ) ( اسم ،فاعل ،واحد ،مذکر ) ( و ـــ هضمېدل ) ـ

**هضمېدۀ** :- ( هض + مې + دۀ ) ( حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب ضیغه ) ( و ـــ هضمېدل ) ـ

**هغ** :- ( هغ ) ( اسم ، صفت ) سرګردان ، سراسیمه ـ

**هغسې** :- ( هه + غه + سې ) ( حرف تشبیه ،متعلق فعل ) هسې ، په هغه شان، هغه رنګ ـ

**هغمره** :- ( هه + غم + ره ) ( اسم صفت ) هغه هومره ـ

**هغو** :- ( هه + غو ) ( اسم ،ضمیر ) د هغۀ جمع ـ

**هغومره** :- ( هه+غوم+ره ) ( اسم،صفت ) هغه هومره،دهغه په مقدار ـ

**هغوي** :- ( هه ( غوي ) ( اسم ضمیر، ضمیر جمع غائب ) د هغو یو قرات ، د هغه جمع ـ

**هغه دغه** :- ( هه + غه + د + غه ) ( اسم ) ټال متېول ،اخوا دېخوا ، انې بانې عذر

**هفته** :- ( هف + ته ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) د خالي نه تر جمعې د ورځو شمار د جمعې نه پس ورځ ـ د خالي ورځ ـ

**هفوات** :- ( هف + وات ) ( اسم ،جمع ) بکواس ، فضول خبرې ـ

**هک** :- ( هک ) ( اسم،صفت ) حېران ، پرېشان ـ

**هک اریان** :- ( هک + ار + یان ) ( اسم،صفت ) ډېر حېران ـ

**هک بک** :- ( هک + بک ) ( اسم ،صفت ) اق بق ، هکا بکا ، حېران ، ګوته په خولۀ ـ

**هکا بکا** :- ( هک + کا + بک + کا ) ( اسم ، صفت ) ( و ـــ هک بک ) ـ

**هکپک** :- ( هک+پک ) ( اسم،صفت ) حېران ، دریان ، هک حېران ـ

**هک دک** :- ( هک + دک ) ( اسم،صفت ) اریان دریان ،هک پک ،حېران دریان ـ

**هکله** :- ( هک + له ) ( حرف،عطف ) حقله ، په باره کښې ـ

**هکه پکه** :- ( ه + که + پ + که ) متعلق فعل ، یقیناً ، خامخا ـ

**هګ** :- ( هګ ) ( اسم،واحد ،مذکر ) مېلو ، یو ځنګلي ځناور ، یږ ـ

**هګه** :- ( هه + ګه ) ( اسم،واحد ،مؤنث ) د هګ مؤنث ، مېلوګنه ، یږه ـ

**هګۍ واله** :-( هه + ګۍ + وا + له ) ( اسم،واحد ،مؤنث ) اګۍ واله ، د هګي وال مؤنث ـ

**هګي** :- ( هه + ګي ) ( اسم،واحد ، جمع ) مؤنث : اګۍ ، ها ،د چرګو تخم ـ

**هګي وال** :- ( هه + ګي + وال ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) هغه سړے چې هګۍ اخستل او خرڅول ئې پېشه وي ـ اګي وال ـ

**هل** :- ( هل ) ( اسم،واحد ،مؤنث ) د یوې کولو اله ، یوې ـ

**هل** :- ( هُل ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) اړم ، اړمے ـ

**هلاک** :- ( هه + لاک ) ( اسم،صفت ) مړګ ، مړ ، قتل شوے ـ

**هلاک کول** :- (ها + لا + کَ + ول )( مصدر متعدي ) مړ کول ، قتلول ، تباه کول

**هلاکونکے** :- ( هه+لا+که+وون+کے )( اسم،فاعل ،واحد ،مذکر )( وګورئ - هلاکول )

**هلاکونه** :- ( هه + لا + که+وۀ+نه )( حاصل،مصدر )( و ـ هلاکول ) .

**هلاکي** :- ( هه + لا + کي )( اسم ، واحد ، مؤنث )( و ــ هلاکت ) .

**هلاکېدونکے** :- ( هه + لا + کې + دون + کے )( واحد ، مذکر )( و ـــ هلاکېدل ) .

**هلال** :- ( هـ + لال )( اسم،واحد ،مذکر ) نوې میاشت ، د ورومبنی شپې نه تر دريو يا دوؤ شپو پورې د سپوږمی حالت .

**هلالي** :- ( هـ + لا + لي )( اسم ، صفت ) هلال سره نسبت لرونکے .

**هلاهل** :- ( هـ + لا + هل )( اسم ، صفت ) زهر ، قاتل ، تېز زهر .

**هلپېره** :- ( هـل + پې + ره )( اسم واحد ،مؤنث ) د یوې کیـل چې پـایې تـه رسېږي او بل کیل ته غوایان ګرځولے کېږي . د قُلبې د ګرځولو حالت .

**هلته** :-( هل + ته )( متعلق فعل) هغه ځاے کښې ، هلته کښې .

**هلک** :- ( هه + لک )( اسم ، واحد ، مذکر ) نر ، ماشوم ، بچے .

**هلکانه**:- ( ها + لۀ + کا + نه )( اسم ،حاصل ، مصدر ) هلکوالی ، هلکوالے ، د هلکوانې وخت .

**هلکوټی** :- ( هه + لک + کو + ټی )( اسم ، صفت ، جمع ) واړۀ هلکان ، د هلکوټے جمع .

**هلکوټے** :- ( هه + لک + کو+ټے )( اسم ،تصغیر ) وړوکے ، کوچنے .

**هلکینه** :-( هـه + لـه + کي + نـه )( اسم ، مؤنث ) زلمیتـوب ،(اسم، صفت) سپکه ، چې وزني نۀ وي .

**هلم** :- ( هه + لم )( اسم ، واحد ، مذکر )( و ـــ الم ) .

**هلواک** :-( هل + واک )( اسم، صفت ) تلوسه لرونکے ، لالچي ، بیړنـدے ، جلت ، تېز

**هله** :- ( هه + لۀ )( متعلق فعل ) بیا ، هغه وخت ، هالۀ .

**هله ځله** :- ( هه + له + ځه + له )( اسم،واحد، مؤنث ) اله ځله ،کوښښ،زيار .

**هله دات** :- ( هه + له + دات )( اسم،واحد ،مؤنث ) د هلکـانو یـوه لوبـه چې د شپې ئې کوي .

**هله ګله** :- ( هه + له + ګ + لـه )( اسم ،واحد ،مؤنث ) هلـه ګلـه ، درز دروز ، ګڼه ګوڼه، شور و غوغل .

**هلهله** :-( هل+هه + له )( اسم ،واحد ،مؤنث ) شور و شر ، غوغا .

**هله هله** :- ( هه + له + هه +له )( امر ) ژر کوه ، ژر شه ، شابه کړه .

**هلې** :- ( هه+لې )( متعلق فعل) الې ،هغه ځاے کښې،هلته ، اورې .

**هلې بلې** :- ( هه + لې + به + لې )( اسم ، جمع ، مؤنث ) فریاد ، ژړا انګولا ، آه و زاري .

**هلې ځلې** :- ( هه + لې + ځه + لې )( اسم ، جمع ، مؤنث ) د هله ځله جمع .

**هلې ګلې** :- ( هه + لې + ګُ + لې )( اسم ، جمع ، مؤنث ) شور غوبـل ، ګڼې ګوڼې .

**هم** :- ( هم )( حرف عطف ) بیا هم ځکه چې . علاوه زیات له دې نه . اراده .

**هـم** :- ( هم ) د غایب ضمیر جمع چې پـه معدور کښې حالت کښې هم وئیلے شي . واړه ، ټول .

**هم اغوش** :- ( هم + ا + غوش )( اسم صفت ) غېږ ، په غېږ ، څنګ په څنګ

**هم اهنګ** :- ( هم + ا + هنګ )( اسم ) یو شان اواز لرونکے .

**هـم بـزم** :- ( هـم + بـه + زم )( اسم،صفت ) د یـو محفـل ناستې پاستې والا دوست ، ملګرے .

**هم بستر** :-( هم + بس + تر )( اسم ، صفت ) د کټ ملګرے ، جنسي محبت کونکے

**هم بستري** :-( هم + بس + ت + ري )( اسم ، واحد ، مؤنث ) د کټ ملګرتیا ، جنسي محبت .

**هم بغل** :- ( هم + به+غل )( اسم ، صفت ) غاړه غړی ، هم اغوش .

**هم پايه** :- ( هم + پا + يه )( اسم ، صفت ) په عمر برابر ، پـه مرتبـه کښې یـو شان

**هم پهلو** :- ( هـم + پـه + لو )( اسم ، صفت ) د اړخ ملګرے ، سره ملاست ملګرے .

**هم پياله** :- ( هم + پيا + له )( اسم ، صفت ) په یوه پیاله څښونکے ملګرے ، دوست

**همتا** :-( هم + تا )( صفت ) مثل ، په شان ، برابر .

**هم توکي** :- ( هم + تو + کي )( اسم ) هم جنسي .

**هز توکی** :-( هم + تو + کی )( اسم ) هم جنسی .

**همجد** :- ( هم + جد ) له یو نیکۀ ، تربوران .

**هم جليس** :-( هم + جه + لیس )( اسم،صفت ) پـه یـو ځاے ناست پاست ، ملګرے ، هم نشین .

**هم جماعت** :- ( هـم + ج + مـات )( اسم،صفت ) پـه یـو جماعت کښې سبق ویونکي ، د سبق ملګري .

**هم جوار** :- ( هم + جه + وار )( اسم ، صفت ) کلي والي ، ګاونډي . همسـایه ، د یو کلي .

**همځولے** :- ( هم+ځو+لے )( اسم،صفت ) د برابرعمر، یو شان عمر .

**هم چشم** :- ( هم + چې+شم )( اسم صفت ) برابر ، سیال ، یو شان .

**همچنان** :- ( هم + چُ +نان )( اسم ، صفت ) هم دغسې ، دغه شان .

**هـم څنـګ** :-( هم+څنـګ )( اسم،صـفت ) همـزولے ، سـیال ، یـو شـان ، د ژوندانۀ ملګرے .

**هم خانه** :- ( هم + خا + نه )( اسم ، صفت ) هنډیوالا ، انډیوالا .

**هم خواب** :- ( هم + خواب )( اسم ، صفت ) یو ځاے اودۀ ، پـه یـو کټ کښې خوب کونکي .

**همـدرد** :- ( هـم + درد )( اسم ، صـفت ) پـه درد کښې شریک ، خېر خواه ، دوست .

**خوږمن** :- ( خو + ږ + من ) دردمن .

**همدم** :-( هم + دم )( اسم ، صفت ) دوست ، اشنا ، ملګرے .

**همدوش** :- ( هم + دوش )( اسم ، صفت ) سیال ، برابر ، یو شان .

**هم ذات** :- ( هم + ذات )( اسم،صفت ) په ذات کښې شریک ، د یو قوم .

**هم راه** :- ( هـم + راه )( اسم،صفت ) د لارې مـل ، د لارې ملګرے ، دوست رفیق .

**هم رکاب** :- ( هم + رکاب )( اسم ، صفت ) د لارې مـل ، د رکـاب ملګرے ، نوکر د سورلی ملګرے .

**هم رنګي** :-( هم + رنګ+ګي )( صفت ) چې په یو شان رنګ وي .

**هم زاد** :- ( هم + زاد ) ( صفت ) یو ځـاے پیـدا شـوے . (اسم ،واحد ، مذکر) هغه پېرے چې ماشوم سره یـو ځـاے پېدا کېږي او تر مرګـه ورسره ملګرے وي .

**هم زلف** :- ( هم + زلف )( اسم ، واحد ، مذکر ) ساندو ، د خښینې خاوند .

**همساز**:- ( هم + ساز )( اسم ، صفت ) ملګرے ، دوست ، رفیق .

**همسايه** :- ( هم + سا + يه )( اسم ، واحد ، مذکر ) کریـه دار ، چې پـه پردو مېنو کښې وسي . ګاونډي .

**همسر** :-( هم + سر )( اسم ، صفت ) په رتبه کښې يو شان ، برابر ـ
**همسفر** :- ( هم + سه + فر )( اسم ، صفت ) د سفر ملګرے ، چې په سفر کښې درسره شريک وي ـ
**هم سنګ** :- ( هم + سنګ )( اسم ،صفت ) برابر ، هم وزن ، سيال ـ
**هم شکل** :- ( هم + ش + کل ) په شکل يو شان ـ
**هم شير** :- ( هم + شير )( اسم ، واحد ،مذکر ،مؤنث) ورور يا خور ـ چې د يوې مور پيئ ئې رودلي وي ـ
**همشيره** :- ( هم + شي + ره )( اسم ، واحد ،مؤنث ) خور ـ
**هم ښنګ** :- ( هم + ښنګ )( اسم ، صفت ) انډيوال ، ملګرے ـ
**هم طالع** :- ( هم + طا + لع ) يو رنګ نصيب لرونکے ـ يو رنګ نصيب والا ـ
**هم عصر**:- ( هم + عه + صر ) د يو دور ، د يوې زمانې ـ
**هم عمر** :- ( هم+عُ+مر )( اسم،صفت ) د يو عمر ،د يو هومره مودې ـ
**هم عنان** :- ( هم + ع + نان )( صفت ) ملګرے ، رفيق ، دوست ، يو برابر ، اوږه په اوږه ـ
**هم غاړے** :- ( هم + غا + ړے ) دوست ، ملګرے ـ
**هم قرين** :- ( هم + قه + رين )( اسم ،صفت ) دوست ، حبيب ، يار ـ
**هم ګند** :- ( هم + ګند ) د يو خاندان ـ
**هم ليک** :- ( هم + ليک ) يو شان ليکل ـ
**هم مشرب** :- ( هم + مش + رب ) د يوې فرقې ، د يو مسلک ـ
**هم نبرد** :- ( هم + ن + برد ) حريف ـ
**هم نفس** :- ( هم + نه + فس ) هم کلام ، ملګرے ، دوست ـ
**هم نوا** :- ( هم + نه + وا ) په اواز کښې شريک ، هم اواز ـ
**هم نواله** :- ( هم + نه + وا + له )( صفت ) يو ځاے ډوډۍ خوړونکے ، پوخ يار ـ
**هم وزن** :- ( هم + و + زن ) يو هومره وزن لرونکے ـ
**هم وقت** :- ( هم + وقت ) د يو وخت ،د يو دور سره تعلق لرونکي ـ
**هُما** :- ( هو + ما )( اسم ، واحد ، مذکر ) يو خيال مرغۍ چې د هغې پحقله دا خيال دے چې که د هغې سيورے په چا وشي نو هغه باچا کيږي ـ
**همال** :- ( هه + مال )( اسم ) مثل ، مثال ، نظير ـ
**همان** :- ( هه + ما ن )( اسم اشاره ) هغه ، هم هغه ، هم دغه ـ
**همايون** :- ( هه + ما + يون ) نيک بخت ، بختور ـ
**همځولتيا** :- ( هم + ځول + تيا )( اسم ، واحد ، مؤنث ) هم عمر ، په عمر کښې برابري ـ
**همځولے** :- ( هم + ځو + لے ) هم عمره ، يو برابر ـ
**همت** :- ( هم +مت )( اسم،واحد ،مذکر ) مقصد ،حوصله ، بهادري ـ
**همت ناک** :- ( اسم، صفت ) محنتي ، باهمته ، د محنت خاوند ـ
**هم دا** :- ( هم + دا )( اسم ، صفت ) دا خبره ، بيخي دا خبره يا کار ته اشاره ـ
**همتي** :- ( هم + مه + تي )( اسم ، صفت ) حوصله لرونکے ، همت لرونکے ، مضبوط ارادو والا ـ
**هم دغسې** :- ( هم + د + غ + سې) هم دغه شان ، هم داسې ـ
**همروزه** :-( هم + رو + زه )( صفت ) روزمره ، امروزه ـ
**همزولتيا** :- ( هم + زول + تيا ) په عمر کښې يو برابر ، دوست ـ
**همسا** :-( هم + سا )( اسم ، واحد ،مؤنث ) امسا ،کونتۍ ، عصا ـ
**همګي** :-( هه + مه + ګي ) ټول ، واړه ـ
**همم** :- ( هه+مم )( اسم،جمع ، مذکر ) د همت جمع ، حوصلې ـ
**هموار** :- ( هم + وار ) هوار ، اوار ـ
**همه** :- ( هه + مه ) ټول ، تمام په تمام ـ
**همه تن** :- ( هه + مه + تن ) ټول ، سراسري ، سر په سر ـ
**همه دان** :- ( هه + مه + دان )(اسم،صفت ) په هر څۀ پوه عالم ـ
**همه شمه** :- ( هه + مه + ش + مه )( اسم ، جمع ، مذکر ) عوام ، عام خلق ـ
**همه ګير** :- ( هه + مه + ګير )( اسم ، صفت ) په ټولو حاوي ، د ټولو احاطه کوونکے
**هم هې** :- ( هم + هې )( اسم ، صوت ) د اوښ د شړلو اواز ـ
**هميانې** :- ( هم + يا + نې )( اسم ، واحد ، جمع ، مؤنث ) بخځکې ،غټه بټوه ـ
**همېش** :- ( هه+مېش )( اسم،واحد ،مذکر ) تل ، هر وخت ، همېشه ـ
**همېش ګل** :- ( هه + مېش + ګل )( اسم ، واحد ، مذکر ) سدابهار ، همېشه ګل Euergreen flower ـ
**همېشګي** :- ( هه + ميش + ګي )( اسم ، واحد ، مؤنث ) همېشه والے ، دوام
**همېل** :- ( هه + مېل )( اسم ، واحد ، مذکر ) امېل ، هار ـ
**هنج** :-( هنج )( اسم ، واحد ، مؤنث )( و ــ هنجه ) ـ
**هنجار** :- ( هن+جار )( اسم ) طريقه،اصول،طرز،(صفت) بې لارې ،بې اصوله ـ
**هنجانه** :- ( هن + جا + نه )( اسم ، واحد ، مؤنث )( و ــ هنجه ) ـ
**هنجکے** :- ( هن + جه + کے )( اسم ، واحد ، مذکر ) د نسواني شرمګاه زياتي غوښه
**هنجه** :- ( هن+جه )( اسم،واحد ،مؤنث ) هنج ،هنجه،هنيګ ،اينجه ، يو حکيمي دارو چې ډېر تېز بوئي لري ـ
**هنجه هنجه** :- ( هنجه + هنجه )(متعلق فعل ) اخوا دېخوا ، ګپ شپ خبرې
**هند** :-( هند )( اسم ، واحد ، مذکر ) ګمان ، خيال ـ
**هنداره** :- ( هن + دا +ره )( اسم،واحد ، مؤنث ) اينداره ، شيشه ، ښيښه ، د مخ کتو ائينه ـ
**هنداريز** :- (هن + دا + ريز )( متعلق فعل ) د هندارې سره تعلق ـ( و ــ هنداره )
**هندسه** :- ( هند + سه )( اسم ، واحد ، مؤنث ) شکل ، عدد ـ
**هندکو** :-( هند + کو )( اسم ،واحد ،مؤنث ) د هندکو ژبې ويونکے ،هندکي ـ
**هندکۍ** :- ( هند + کۍ )( اسم ،واحد ، مؤنث ) د هندکو ژبې ويونکې جينۍ ـ
**هندو** :- ( هند + دو )( اسم ، واحد ، مذکر ) غېر مسلم قوم نوم ـ د هندوستان اوسېدونکے ـ
**هندو ازم** :- ( هن + دو + ا + زم )( اسم ، واحد ، مذکر ) د هندوانو مذهب ـ
**هندوانه** :- ( هند +وا+نه )( اسم ، واحد ، مؤنث ) يوه خوږه مېوه ـ ايندوانه ، تربوز ـ
**هندوانه** :- ( هند + وا + نه )( اسم ،واحد ،مؤنث )( و ــ هندوانه ) ـ
**هندوانې** :- ( هند + وا + نې )( اسم ، واحد ، جمع ، مؤنث) هندوه ، يو قسم زيړ سر لرونکې مرغۍ ـ
**هندوبار** :- ( هن + دو + بار )( مذکر ) د هندوانو ملک ، هندوستان ـ
**هندوسوزان** :- ( هن + دو + سو + زان)( اسم ) هغه ځاے چې هندوان په کښې سېزلے شي ـ
**هندوکار** :- ( هن + دو + کار )( اسم،واحد، مذکر)( و ـ هندوبار ) ـ
**هندوه** :- ( هن+دۀ+وه )( اسم،واحد ،مؤنث ) د هندو تانيث ، اندوه ـ
**هندۍ** :- ( هن + دۍ )( اسم ، واحد ، مؤنث ) د هندوانو ژبه ، د هند اوسېدونکې ـ

**هنډت** :- ( هن + ډت ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) یوه مرغۍ چې مېنوکه ئې د کورنې چرګانو په شان وي .

**هنډر** :- ( هن + ډر ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) ابغر ، مست زلمے ، مضبوط وجود والا .

**هنډک** :- ( هن + ډک ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) د کچې ګوټې سره خوا کښې د تلي یوه نرمه کربښه .

**هنډه** :- ( هن + ډه ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) هغه ارمان چې سړے ئې د تکمیل دپاره ډېر تږے وي . قصد ، اراده .

**هنډه** :- ( هن + ډه ) ( صفت ) تکړه ، مضبوط .

**هنډ هنډ** :- ( هنډ + هنډ ) ( اسم ، صفت ) ټوکړې ټوکړې . سترے .

**هنډي** :- ( هن + ډي ) ( اسم ، واحد ، جمع ، مؤنث ) ونډي ، انډي .

**هنډۍ** :- ( هن + ډۍ ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) چیک ، هغه کاغذ چې د رقم ادا کولو اړه ور پرې لیک وي .

**هنډیوال** :- ( هن + ډي + وال ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) دوست ، یو ځاے خوراک څښاک کولو والا .

**هنډیدل** :- ( هن+ډي+دل ) ( مصدر لازم ) هنېدل ، د اس اواز کول .

**هنر** :- ( هو + نر ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) فن ، کمال ، جوهر .

**هنر پیشه** :- ( هو + نر + پې + شه ) هنر من ، هنرمند .

**هنر جوي** :- ( هو + نر + جو +ي ) ( اسم ،صفت ) هنرمند ، پیشه ور .

**هنرمن** :- ( هو + نر + من ) هنر لرونکے . هنرمند .

**هنرمندي** :- ( هو + نر + من + دي ) ( صفت ) فن ، کمال ، استاذي .

**هنري** :- ( هو+ ن + ري ) ( اسم ، صفت ) هنر لرونکے ، هنر مند ، د هنر خاوند .

**هنک** :- ( هنک ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) مسخره ، ټوقه .

**هنګ** :- ( هنګ ) ( واحد ، مذکر ) اراده ، زور ، طاقت ، زیرک ، هوښیار ، ملنډه ، ټوقه .

**هنکۍ** :- ( هن + کۍ ) ( اسم ، واحد ، جمع ، مؤنث ) د وادۀ په وخت د ناوې ژړا .

**هنکے** :- ( هن + کے ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) ( و ـــ هنکۍ ) .

**هنګا** :- ( هن + ګا ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) د خر یا خرې رینګارې ، د خر یا خرې برار ، هنګارے ، هنار .

**هنګار** :- ( هن + ګار ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) ( و ـــ هنګار ) .

**هنګاوے** :- ( هن+ګا+وے ) ( اسم ، صوت ) ( وګورئ هنګا ) .

**هنګام** :- ( هنګ +ګام ) ( اسم واحد ، مذکر ) زمانه ، دور ، وخت .

**هنګامه** :- ( هنګ + کا + مه ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) شور و غوغا ، ګړبړ ، فتنه

**هنګامي** :- ( هنګ + ګا + مي ) ( اسم صفت ) یو خاص وخته پورې ، د څو ورځو ، وقتي ، خراب حالات .

**هنګولا** :- ( هنګ + ګو + له ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) انګولا ، واوېلا ، ژړا ، شور غوغا .

**هنګولل** :- ( هنګ + ګو + لل ) ( مصدر لازم ) ژړا فریاد کول .

**هنګه** :- ( هنګ + ګه ) ( اسم ،واحد ،مؤنث ) ( و ـــ هنجه ، اینجه ) .

**هنګهار** :- ( هنګ + ګه + هار ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) فریاد ، انګولا ، ژړا .

**هنګېدل** :- ( هنګ + ګې + دل ) مصدر لازم ، د خر یا خرې رینګار کول ، هنېدل . له ستومانۍ یا بیمارۍ نه فریاد کول .

**هنګېدنه** :- ( هنګ+ګې+دۀ+نه ) ( حاصل مصدر ) ( و ـــ هنګېدل ) .

**هنې** :- ( هه + نې ) ( اسم ، صفت ) خوشګواره ، مزیداره ، هضم کېدونکې . شات Honey ، خوږ څیز .

**هنې** :- ( هنې ) ( اسم ، واحد ،مذکر ) په زورخندا . د اسپې هنار .

**هنا** :- ( هه + نا ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) د خر یا کچر ، هنګېدنه . د مرغانو د الوتې اواز .

**هـنې تـنې** :- ( هـن + تـنې ) ( اسم ،صـفت ) روغ جـوړ ،روغ رمـټ ،صـحت مند ،مست .

**هنه** :- ( هه+نه ) ( اسم ،واحد ،مؤنث ) رنه ،کمزورے ، ضعیف .

**هنهار** :- ( هن+هار / ه +نار ) په زوره خندا . دخریا اس اواز . هنېدل .

**هنې هنې** :- ( هنې + هنې ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) د اس یا خچر وغېره اواز . په زوره خندل ، د خندا اواز .

**هنېدل** :- ( ه + نې + دل ) ( مصدر لازم ) د خر یا اس وغېره اواز کول . د خر مستي کول . په زوره زوره خندل .

**هنېدۀ** :- ( ه + نې + دۀ ) ( حاصل ، مصدر ) ( و ـ هنېدل ) .

**هو** :- ( هو ) ( اسم ، صوت ) د غوا ، غوئي د بېدارولو یا شړلو اواز .

**هو** :- ( هو ) ( اسم ،واحد ،مذکر ) نو ، پیپ ،د زخم ګنده اوبۀ .

**هو** :- ( هو ) کلمه اثبات ، هاؤ ، او .

**هو** :- ( هو ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) هنګامه ، حمله .

**هو** :- ( هو ) ضمیر ،هغه . د صوفیانوپه اصطلاح خداے پاک .

**هو** :- ( هو ) کلمه ، د تعجب یا حېرانۍ کلمه .

**هوا** :- ( هه + وا ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) باد . کبر ، غرور .

**هوا** :- ( هه + وا ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) خواهش ، خوښ .

**هواباز** :- ( هه + وا + باز ) ( اسم ، صفت ) د جهاز چلونکے ، پائلټ .

**هوا خواه** :- ( هه + وا + خوا ) ( اسم ، صفت ) دوست ، ملګرے .

**هوا خوري** :- ( هه +وا+خو+ري ) ( اسم،واحد ،مؤنث ) چکرلګونه ،سېل کونه

**هواد** :- ( هه + واد ) ( مذکر ، صفت / متعلق فعل ) ایواد ، هیواد ، لرې ، په فاصله ، وطن ، ملک .

**هوادار** :- ( هه + وا + دار ) ( صفت ، مذکر ) داسې ځاے چې فراخه وي او هوا په کښې لګي . فراخه ځاے .

**هوادنے** :- ( هه + وا + د + نے ) ( اسم،صفت ) لرې ، په فاصله ملکي ،وطني .

**هوادین** :- ( هه + وا + دین ) ( اسم ، صفت ) هیوادین ، لرې ، د نزدې ضد .

**هوار** :- ( هه + وار ) ( اسم ، صفت ) سم ، اوار ، چې کنده په کښې نۀ وي . برابر

**هوار توب** :- ( هه +وار+توب ) ( اسم،واحد ،مذکر ) ( و ـ هوارتیا ) .

**هوارتیا** :- ( هه +وار + تیا ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) د هوار نه اسم ، د هوار کېدو حالت .

**هوارونه** :- ( هه + وا + ره +وۀ+نه ) ( حاصل مصدر ) ( و ـ هوارول ) .

**هوارول** :- ( هه + وا + ره + ول ) ( مصدر متعدي ) د کندو کپرو نه اوارول . سمول ، زمکه سمول یا اوارول . یو شان کول .

**هواره** :- ( هه + وا + ره ) ( اسم،واحد ،مؤنث ) سمه ، مېداني علاقه ، صفت ، روغه ، جوړه .

**هوارېدل** :- ( هه + وا رې + دل ) ( مصدر لازم ) سمېدل ، برابرېدل . یو شان کېدل .

**هواریدن** :- ( هه + وا + رې+دن ) ( حاصل مصدر ) ( و ـ هوارېدل ) .

**هوارېدونکے** :- ( هه + وا + رې + دون + کے ) ( اسم ،فاعل ، واحد ، مذکر ) جمع: هوارېدونکي . ( و ـــ هوارېدل ) .

**هواړ** :- ( هه + واړ ) ( اسم،واحد ،مذکر ) لوخړه ، بخار ، بړاس .

**هواګیر** :- ( هه+ وا + ګیر ) ( اسم ، صفت ) تېز رفتار ، سرسري ، اوپره ، وچت بره .

**هوانورد** :- ( هه + وا + نه + ورد ) ( اسم ، صفت، واحد ، مذکر ) په هوا کښې الوتونکے ، هواباز .

**هو اوا**:- (هو + ا + وا)(اسم، واحد، مؤنث) هو هوا، خندا، خوشحالي.
**هوائي**:- (هه + وا + ئي)(اسم،صفت) چالاک ،بې پروا،سرسري،اسماني.
**هوبله**:- (هوب + له)(اسم، واحد، مؤنث)ذريعه، وسيله.
**هو بهو**:-(هو + به + هو)(اسم، صفت) هم هغه شان، بالکل، هغه سې، يو رنګ.
**هوبې**:- (هو + بې)(اسم، واحد، مذکر) مذبذب، غېر مستقل مزاجه.
**هوټ**:- (هوټ)(اسم، واحد، مذکر) پېکر، جسد.
**هوټل**:- هو + ټل)(اسم، واحد، مذکر) هغه ځاے چې د خوراک څښاک او اوسېدو انتظام په کښې وي-سرائے.
**هوټې**:- هو+ټې)(اسم صفت) هغه اوښ چې ډېر تېز رفتاره وي.
**هود**:- (هود)(اسم، واحد، مذکر) تلاؤ، تالاب، حوض.
**هودج**:- (هو + دج)(اسم، واحد، مذکر)کجاوه، کيجاوه.
**هوده**:- (هو + ده)(اسم، واحد،مؤنث)(و ـــ هودج).
**هوده**:- (هو + ده)(اسم ،واحد، مؤنث) جادو، منتر، کوډه.
**هوده**:-(هو + ده)(اسم، واحد، مؤنث) عهده، منصب.
**هوده کول**:- (هو + ده + ک + ول)(مصدر متعدي) دمول، په هوده کښې راوستل.
**هوډه**:-(هو + ډه)(اسم، واحد، مؤنث) ځيل، ضد، لاتجه.
**هوډي**:- (هو+ ډي)(اسم، صفت) د هوډ خاوند، مستقل مزاج، خلاف، مخالف.
**هوډيالے**:- (هو + ډ + يا + لے)(صفت، مذکر) د هوډ مالک، د ارادې او عزم خاوند، د کلکې ارادې څښتن.
**هوډے**:-(هو+ډے)(اسم، صفت) ثابت قدم، مستقل مزاج، په خپله راده قائم
**هور**:- (هور)(اسم، واحد، مذکر) حمله، تاخت.
**هور**:- (هور)(اسم، واحد، مذکر) جاله، د مارغانو د اوسېدو ځاے.
**هور**:- (هور)(اسم، مذکر) وسې، هوسې.
**هور**:- (هور)(اسم، صفت) تېز و تند، چالاک، اور.
**هور تور**:-(هور+تور)(اسم، صفت) بهادر،مړنے، ور تور ځوان.
**هورته**:-(هور + ته)(متعلق فعل) هغه طرف ته، هلته، پورته.
**هورونه**:-(هو + رو + نه)(اسم، جمع، مذکر) صدي.
**هوره**:- (هو + ره)(اسم، صفت، واحد، مؤنث) ډېره ښائسته ښځه (وګورئ ـــ حوره).
**هورې**:-(هو + رې)(متعلق فعل) هغه خوا، هلته.
**هورې وورې**:- (هو + رې + وو + رې)(متعلق فعل) اخوا دېخوا، هلته دلته.
**هورۍ**:-(هو + رۍ)(اسم، واحد، جمع، مؤنث) اورۍ.
**هوړه**:-(هو + ړه)(اسم، واحد، مؤنث) اوړه، نباتاتي نوم: ايليم سېټيي وم.
**هوړۍ**:- (هو + ړۍ)(اسم،واحد،جمع، مؤنث) د هوړې په شان د يوې سبزۍ نوم
**هوس**:- (هه + وس)(اسم، واحد، مذکر) لالچ، حرص،لوږه، ارمان.
**هوسا**:-(هو + سا)(اسم، صفت) مطمئن، په ارام، اطمينان.
**هوساتوب**:-(هو + سا + توب)(اسم، واحد، مذکر) ارام، خوشحالي، اطمينان
**هوساکېدل**:-(هو + سا + کې + دل)(مصدر لازم) سا اچول، دمه کول، ساه اخستل
**هوس انګېز**:-(هه + وس + انګ + ګېز)(اسم،صفت) هوس راوچتونکے، جنسي خواهش بېدارونکے.
**هوساوالے**:- (هو + سا + وا + لے)(اسم، واحد، مذکر) سکون، ارام، اسائش.
**هوسائي**:-(هو + سا + ئي)(اسم،واحد،مؤنث)(و ـ هوساوائے).
**هوس پرستي**:-(هه + وس + په + رس+تي)(اسم،واحد، مؤنث) د نفسياتي خواهش پېروي، حرص لالچ.
**هوستل**:- (هوس + تل)(اسم، صفت)(و ـــ هوسټل).
**هوسټل**:- (هوس+ټـل)(اسم،واحد، مذکر) هاسټل، هغه ځاے چې طالبعلمان په کښې د زده کړې په وخت اوسېږي.
**هوس راني**:- (هه + وس + را + ني)(اسم، واحد، مؤنث) د نفسياتي خواهشاتو پېروي.
**هوسناک**:- (هه + وس + ناک)(اسم، صفت) لالچي، حرص ناک، عياش
**هوسېدل**:- (هو+سې + دل)(مصدر لازم) زيرېدل، ارزو کول ،خوشحالېدل. د څۀ څيز په طمع زيرېدل.
**هوسېدن**:- (هو + سې + دن)(حاصل مصدر)(و ـــ هوسېدل).
**هوسېدنه**:- (هو + سې +دۀ+نه)(حاصل مصدر)(و ـ هوسېدل).
**هوسېدونکے**:-(هو + سې + دون + کے)(اسم، فاعل، واحد، مذکر)(و ـــ هوسېدل)
**هوسېدۀ**:- (هو + سې + دۀ)(حاصل مصدر)(و ـــ هوسېدل).
**هوسۍ**:- (هو + سۍ)(اسم، واحد / جمع، مؤنث) اوسۍ، لکه شويه، نرکشه، يو قسم ځنګلي ځناور چې په منډه کښې ډېره تېزه وي.
**هوسي شيدي**:- (هو + سي + شي + دي)(اسم) هغه سپينه او نرمه ماده چې دپسرلي په موسم د کانيو له مينځ راوځي.
**هوش**:- (هو + ش)(اسم، واحد، مذکر) فهم، ادراک، عقل.
**هوښ**:- (هو + ښ) (اسم واحد، مذکر)(و ـــ هوش).
**هوښيار**:-(هوښ + يار)(صفت) هوښيار، زيرک، عقلمند قابل، عاقل.
**هوښيارول**:- (هوښ، يا+ره + ول)(مصدر متعدي) پوهول، عقلمند کول، هوښار جوړول.
**هوښيارون**:- (هوښ+يا+ره+ون)(حاصل مصدر)(و ـ هوښيارول).
**هوښيارتوب**:-(هوښ + يار + توب)(اسم، واحد، مذکر) هښيارتوب. (وګورئ ـ هوښيارتيا).
**هوښيارتيا**:-(هوښ +يار + تيا)(اسم ،واحد، مؤنث) هښيارتيا، قابلتوب، پوها، زيرکي.
**هوښيارونه**:- (هوښ + يا + ره +وۀ نه)(حاصل مصدر)(و ـــ هوښيارول)
**هوښيارۍ**:- (هوښ + يا + رۍ)(اسم، واحد، مؤنث) عقلمندي، هوښيارتوب، زيرکي.
**هوښيارېدونکے**:-(هوښ + ياري + دون + کے)(اسم فاعل، واحد ،مذکر)(و ـــ هوښيارېدل).
**هوغومره**:-(هو + غوم + ره)(متعلق فعل / اسم، صفت) هغه هومره، د هغې په مقدار.
**هوغه**:-(هو + غه)(ضمير، هغه.
**هوک**:- (هوک)(اسم، صفت) په خيال کښې ورک، لاهو.
**هوک پوک**:- (هوک، پوک)(اسم صفت) مشغول، په تصور کښې ورک مصروف، مغرور.
**هوکړه**:- (هو + کړه)(اسم، واحد ،مؤنث) وعده، لوظ، پښتو.
**هوکلۍ**:- (هوک +لۍ)(اسم، واحد، مؤنث) بغرۍ، لنګرۍ.
**هوکول**:- (هو+ که + ول)(مصدر متعدي) هاؤ کول، اقرار کول.
**هوکه**:-(هو + که)(اسم،صفت) ډېر ستړے، ستومانه ،(اسم) ربړونه.

ستړے کونه

**هوکه** :- ( هو + که )( اسم ، واحد ، مؤنث ) اقرار ، وعده ، مننه۔

**هوکه سوکه** :- ( هو +که+سو+که )( اسم ، مرکب ، واحد ، مؤنث ) نـاقلاري او قلارے۔کوله بوله ، کله ارام او کله کړاو۔

**هوکے** :- ( هـو + کے )( اسـم ، واحـد ، مـذکر ) د کـوږدن پـه سلسـله کښـې د جينۍ د لېدو وعـده اخسـتنه۔وعـده اقـرار اخسـتنه ، ګـوټ اواقـرار ، لوظ۔

**هول** :- ( هو+ ل )( اسم ، واحد ، مـذکر ) ويـره ، فکر۔(اسم صفت) وحشـي ،د لرګي يو قسم۔

**هولکے** :- ( هول+کے )( اسم ، صفت ) ويرې اخستے ،خفه، پرېشان۔

**هولناک** :- ( هول + ناک )( اسم ، صفت ) خطرناک ، ويرونکے۔

**هوله** :- ( هو + له )( اسم ، واحد ، مؤنث ) بيګار ، جمع ، هولې۔

**هولۍ** :- ( هو + لۍ )( اسم ، جمع ، مؤنث ) د هندوانو يو دستوره چې پـه يـو بل په کښې رنګونه اچوي۔

**هومبره** :- ( هو + مب + ره )( متعلق فعل / اسم صفت) دغه هومبره ، هـومره (و ـــ هومبره )۔

**هونبره** :- ( هونب + ره )(متعلق فعل /اسم صفت ) هومره ، دومره۔

**هونډۍ** :- ( هـون+ډۍ )( اسم،واحد/ جمع،مؤنـث ) بـرات ،حجـت ،( و ـــ هنډي )

**هونا** :- ( هو + نا )( اسم ، واحد ، مؤنث ) هغه لټ چې مرغۍ په کښې نيـولے شي۔پړکه۔

**هونائي** :- ( هو + نا + ئي )( اسم ، واحد ، مذکر ) يو قسم ښکاري مارغۀ۔

**هووې** :- ( هو + وې ) کلمه ، د تعجب کلمه۔

**هو هوا** :- ( هو + ه + وا ) اسم مرکب ، هو اوا ، مزې چرچې ، پـه سر کښـې هوا ګرځېدنه ، سېل صفا ، سېل سپاټ۔

**هوهوک** :- ( هو + هوک )( اسم ، واحد ، مذکر ) هو هو کول ، غوا يـا غـوئې ته د شړلو يا ودرولو اواز۔

**هوپه** :- ( هو+په )( اسم اشاره ) ها ،غه،لرې څيز ته اشاره ، هغه۔

**هوپه** :-( هو+په )( اسم ، واحد ، مؤنث ) د ها اسم تصغير ، اګۍ۔

**هويدا** :-( هه + وې + دا )( اسم ، صفت ) ښکند ، ظاهر۔

**هوي** :- ( هوي )( اسم ) د خاورين لوښو د پخولو پجه۔

**هه** :- ( هه ) کلمه۔هغه کلمه چې د څۀ کار نه منع کولو دپاره وئيلے شي۔

**هـئ** :-( هـئ ) کلمـه تاسـف / اسـم ، افسـوس ، هـائې ، د افسـوس کلمـه ، حمله۔ زيار ، شور و غوغا۔

**هئ هئ** :- ( هئ + هئ ) کلمه تاسف ، هائې هـائې ، د غـم کلمـه ، د افسـوس کلمه۔

**هۍ** :-( هۍ ) داتورے د غواښېنو دشړلوپه وخت وئيلے شي۔

**هيپ هي** :- ( هيپ + هي )( اسم ، صوت ) د اوښانو د شړلو اواز۔

**هيټر** :- ( هي+ټر )( اسم ،واحد ،مذکر ) د بجلۍ يا ګېس ګرمونکے مشين ، د کمرې ګرمونه او اخلے پخلے پرې کولے شي۔

**هيټکۍ** :- هيټ + کۍ )( اسم ، واحد ، جمع ، مؤنث ) ايټکۍ۔

**هيجړا** :-( هيج + ړا )(اسم صفت ) ايجړا ، ښځونے۔

**هيرا** :-( هي + را )( اسم ، واحد ، مؤنث ) الماس ، جوهر ، يو قيمتي کاڼے۔

**هيروړے** :-( هير + ړے )( اسم ، واحد ، مذکر ) ( و ـــ ايرړے )۔

**هيرو** :-( هي +رو )( اسم،واحد،مذکر ) بادرسړے،تکړه سړے۔

**هيروئن** :- ( هي + رو + ئن )( اسم ، واحد ، مؤنث ) د هيرو مؤنث۔ يو نشـه لرونکے سفوف۔پاؤډر۔

**هيرې** :-( هي + رې )( اسم ، جمع ، مؤنث ) ايرې۔

**هيرۍ** :-( هي+رۍ ) ( اسم ، جمع ، مؤنث ) د خولې جنګ کونـه ، د خبـرو جنګ۔خولۀ وهل ، ايرۍ۔

**هيړ** :- ( هيړ )( اسم ، واحد ، مذکر ) حالت ، دور ، وخت ، نوبت ، وار۔

**هيړه** :-( هي + ړه )( اسم ،واحد ، مؤنث ) ځل ، پېره ، چل ، وار۔

**هيړے** :-( هي + ړے )( اسم ، واحد ، مذکر ) هغه ګډه چې اوږده لکۍ لري۔

**هيس** :- ( هيس )( اسم ، صوت ) د څاروو د رابللو اواز ، د څـاروي د اوبـو څښلو د اماده کولو اواز۔

**هيسته** :-( هـيس + تـه )( متعلق فعـل ) وروسـتو طـرف تـه ، شـاته ، دلتـه ، ايسته، دلې۔

**هيسې** :- ( هي + سې )( متعلق فعل) يو اړخ ته ، دېخوا۔

**هيسکارل** :- ( هيس + کـا + رل ) د څاروي د هيس هيس پـه ذريعـه رابلـل۔ اوبو څښلو ته اماده کول۔

**هيســـکارلے** :- ( هيس+کــا+رۀ+لے )( اســـم ،مفعول،واحد ،مذکر)( و ـــ هسيکارل )۔

**هيسکارن** :-( هيس+کا+رن )(حاصل مصدر)( و ـ هيسکارل )۔

**هيسکارنه** :-( هيس+کا+رۀ+نه )(حاصل مصدر)( و ـ هيسکارل )۔

**هيښ** :-(هيښ)(اسم ،صفت) اريان ، هک دک ،هک بک ، ترهور ، ساده ، زهير

**هيښ پيښ** :- ( هيښ + پيښ )( اسم ،صفت ) اريان دريان ، حېرا ن۔

**هيښتوب** :- ( هيښ+توب )( اسم،واحد ،مذکر ) حيرانۍ،سادګۍ۔

**هيښتيا** :- ( هيښ+تيا )( اسم،واحد ،مؤنث ) هيښتوب ، حيراني۔

**هيښمه** :- ( هيښ + مه )( صفت )( و ـ هښمه )۔

**هيل** :- ( هيل )( اسم،واحد ،مذکر ) وګورئ : لاچي،سپين لاچي۔

**هيلن** :- ( هي + لن )( اسم ، صفت ) اسره من ، امېدوار۔

**هيلندوکۍ** :-( هي + لن + دو+کۍ )( اسم،صفت ) هيله کونکي۔

**هيله** :-( هي + له )( اسم ، واحد ، مؤنث )طمع، توقع ، امېد۔

**هيله** :- ( هي + له )( اسم ، واحد ، مذکر ) سرپه ، حيله بهانه۔

**هيله** :-( هي + له )( اسم ، صفت ) صرف ، فقط ، بس ، ايله۔

**هيله بيله** :- ( هي + له + بي + له )( اسم ، صفت ) فقط ،صرف ،ايله بيله۔

**هيلې بيلې** :-(هي + لې + بي + لې)(اسم ، واحد ، مؤنث) درک ، لټون ، منت ، کوښښ۔

**هيلۍ** :- ( هي+ لۍ )( اسم ، واحد ، جمع ، مؤنث ) صـحرائي مرغـابۍ ، ايلۍ ، يو قسم مارغۀ۔

**هيلے** :- ( هي+لے )( اسم،واحد ،مذکر ) د هيلۍ مـذکر ، د هيلـۍ نـر ، د هلکانو يوه لوبه چې په اوبو کښې کولے شي۔

**هينډه** :- ( هين + ډه )( اسم ،واحد ،مؤنث ) مخالفت ، ضد۔

**هېنګ** :- ( هېنګ )( اسم صفت ) انکاري ، اړيدنه ، ضد ، اسم۔

**هينګه** :- ( هېن + ګه )( اسم ، واحد ، مؤنث ) هغه څوک چې هيڅ جادو منتر ، پرې اثر نۀ کوي۔

**هينګي** :- ( هينګ + ګي )( اسم ، صوت ) د ماشومانو ژړا۔

**هينګپار** :- ( هينګ+پار )( اسم،واحد ،مذکر ) زور ، قوت ، طاقت۔

**هينړ** :- ( هينړ )( اسم ،واحد ، مذکر ) زور ، طاقت ، قوت۔

**هينړے** :- ( هي + ړے ) تکړه ، بهادر ، طاقتور۔

**هې** :- ( هې ) د افسوس کلمه۔

**هېبت** :- ( هې + بت )( اسم ، واحد ، مذکر ) دبدبه ، يره ، رُعب۔

**هېبت ناک** :- ( هې+بت+ناک )( اسم ،صفت ) خطرناک ، ويرونکے۔

**هيټ** :- ( هيټ )( اسم ، واحد ، مذکر ) انګريزي ټوپۍ ، ټوپ۔

**هیجـان** :-(هـي + جـان)(اسـم ، واحد ،مـذکر) تېـزي ، زور ، غلبـه ، جـوش ، يشيدنه.
**هیجاني** :- (هي +جا+ني)(اسم ، صفت) جوش سره تعلق ، تېز.
**هیچ** :- (هیچ)(اسم صفت)(و ــ هیڅ).
**هیچا** :-(هیچ+چا)(اسم ، صفت) د هیچ او د چا مرکب ، څۀ هم نه.څوک هم نه.
**هي چېرته** :- (هیچ +چر +ته)(متعلق فعل) چېرې هم نه ، کله هم نه.
**هیچېرې** :- (هیچ + چ + رې)(متعلق فعل) چېرې هم نه ، په هيڅ قيمت نه .کله هم نه.
**هیچمدان** :- (هیچ ، مه + دان)(صفت) په هیڅ نۀ پوهېدونکے.عـام طور سره انکساراً ځان دپاره استعمالېږي.
**هیڅ** :- (هیڅ)(اسم صفت) بې حقيقته ، نۀ څیز ، نشت ، لږ.
**هېڅ بې هېڅه** :-(هېڅ + بې + هېڅه)(متعلق فعل)(وګورئ : اسې داسې).
**هېڅوک** :- (هیڅ + څوک)(اسم ، صفت) څوک هم نه.
**هېڅکله** :- (هېڅ+که+له)(متعلق فعل) کله هم نه ، چېرې هم نه.
**هېداد** :- (هې + داد)(اسم ، واحد ، مذکر) دړکه ، خبردارے.
**هېډ** :- (هېډ)(اسم صفت) اصل معنٰی سر.(صفت) خدا ے ، مشر.
**هېډ کلرک** :- (هېډ+کلرک)(اسم،واحد،مذکر) خدا ے بابو،مشربابو.
**هېډ ماسټر** :- (هېډ + ماس + ټر)(اسم ، واحد ، مذکر) خدا ے استاذ ، مشر استاذ ، د سکول سربراه.
**هېر** :- (هېر)(صفت) لۀ ياده وتے ، له حافظې نه وتے.
**هېرتوب** :- (هېر + توب)(اسم ،واحد ،مذکر) هېرونه ، هېروالے.
**هېر زړے** :- (هير + زۀ + ړے)(اسم ، صفت) هېرژن.
**هېرژن** :- (هېر + ژن)(صفت) هېرونکے ، چې هېر ئې ډېر وي.
**هېر غالے** :- (هېر+غا+لے)(صفت) هېرژن،هېروندونکے،هېرونکے.
**هېرمن** :- (مېر + من)(صفت) بې فکره ، نسيان کونکے.
**هېـرن** :- (هـې + رن)(اسـم ، صـفت ، واحـد ، مـذکر) هېـر زړے ، غبـي ،شکوم.
**هېروالے** :-(هېر+وا+لے)(اسم ، واحد ، مذکر) د ياداشت نه ايستنه ، هېرونه.
**هېرول** :- (هې + ره + ول)(مصدر متعدي) له خياله وتل ، د ياداشت نه ايستل.
**هېرون** :- (هې + ره + ون)(اسم ، فاعل ، واحد ، مذکر) جمع : هېروونکي .(و ــ هېروول).
**هېرونګ** :- (هې + ره + ونګ)(حاصل مصدر)(و ــ هېرول).
**هېره** :-(هې + ره)(اسم ،صفت) د هېر مؤنث.اسم ، واحد مؤنث : ګيله مانه.د حافظې کمزوري.
**هېرېدونکے** :-(هې +رې+دون+کے)(اسم،فاعل،واحد،مذکر)(و ــ هېرېدل)
**هېرېدۀ** :- (هې + رې + دۀ)(حاصل مصدر)(و ــ هېرېدل).
**هېږ** :-(هيږ)(اسم ، واحد ، مذکر)(و ــ ايږ).
**هيش** :-(هيش)(اسم ، واحد ، مذکر) جوش ، ځوښ.
**هيشول** :- (هے + شه + ول)(مصدر متعدي)(و ــ يشول).
**هيښه** :-(هے + ښه)(اسم ، واحد ،مؤنث) حېراني ، ساده والے.
**هيضه** :- (هے +ضه)(اسم ، واحد ، مؤنث) يو وبائي مرض چې په کښې قے او دست لګي.
**هېغ** :- (هېغ)(صفت) نېغ.
**هېغ پېغ** :- (هېغ + پېغ)(اسم،صفت) ايغ نېغ.بالکل نېغ.
**هېغ نېغ** :-(هېغ + نېغ)(صفت ، اسم) بې باکه.
**هېکارل** :-(هې + کا +رل)(مصدر متعدي) د تکـارل ششـکارل ، خصوصاً د سپو په جنګ کښې سپے جنګ ته ګمارل.
**هېکارلے** :- (هې + کا + رۀ + لے)(اسم،مفعول،واحد ،مذکر)(و ــ هېکارل)
**هېکارونکے** :-(هې+کا+رون+کے)(اسم فاعل)جمع : هېکارونکي.(و ــ هېکارل
**هېکارنه** :- (هې + کا + رۀ + نَه)(حاصل مصدر)(و ــ هېکارل).
**هېک امانه** :-(هېک + کا + ما + نه)(اسم ، صفت) سر تر پښـو ، يـو شـان ، مساوي، برابر.
**هېکل** :- (هې + کل)(اسم ، واحد ، مذکر) د تبغانې خدا ے مکان.صورت ، شکل
**هېنېدل** :-(هې+نې+دل)(مصدرلازم) د اس ، خر وغېره اواز کول.
**هېواد** :- (هې + واد)(متعلق فعل / صفت) لرې په فاصله ، بعيد ، اسم ، واحد ، مذکر وطن.
**هېوادنے** :- (هې + وا + دۀ + نے)(اسم صفت) لـرې ، پـه فاصـله ،وطنـي ،وطن سره تعلق لرونکے.
**هېواد وال** :- (هې + واد + وال)(اسم ، صفت)(و ــ هېوادنے).
**هېولا** :- (هه+يو+لا+ / هے+و+ لا)(اسم ، واحد ، مؤنث) اصل د هر يـو څيـز ماده ، بد ، بد شکله.غېر مهذب شکل.
**هئيت** :- (هے + ئت)(اسم ، واحد ، مذکر) شکل ، علم نجوم.

◈◈◈

# ي

**ی** :– د پښتو د حروف تهجي يوڅلوېښتم ، د عربۍ اته ويشتم، د فارسۍ
دري دېرشم او د اردو پنځه دېرشم حرف دے. د ابجد په حساب يې
لس عدده مقرره دي.

**ياغي گر** :- (يا + غي+ گر) ياغستان (اسم ، واحد ،مذكر) ياغي جوړولو
واله

**ياغيگري** :- ( يا + غي + گۀ + ري ) ( اسم ،واحد ، مؤنث ) سركشي ،
بغاوت

**ياغيوالے** :- ( يا + غي + وا + لے ) ( اسم ، واحد ، مذكر )
( وګورئ ـ ياغيتوب )

**يافت** :-( يا فت ) ( واحد ، مذكر ) موندلے شوے ، رشوت گټه ، امدن ،
گټه وټه ـ

**يافتني** :- ( يا + ف + ت + ني ) ( صفت ) د حاصلولو قابل ،

**يافتول** : ( يا + ف + ته + ؤل ) ( مصدر متعدي ) موندل ، پېدا كول

**يافته** :- ( يا ف + ته ) ( مفعول ، صفت ) حاصل كړے شوے ـ

**يافتېدل** :- ( ياف + تې + دل ) ( مصدر لازم ) موندلے كېدل ، پېدا كېدل ـ

**ياقوت** :- ( يا + قوت ) ( اسم ، واحد ، مذكر ) يو قيمتي كاڼے چه په
مختلفو رنگونو كښې وي ، لعل ـ

**ياقوتي** :- ( يا + قو + تي ) ( صفت ) ياقوت سره نسبت لرونكے ، عام طور
سره سور رنګ لرونكے څيز ـ

**يال** :- ( يال ) ( اسم ، واحد ، مذكر ) د ځناورو په څټ غټ وېښتۀ ،
د اس د څټ وېښتۀ ، څټ ، غړې ، د ځناورو څټ ـ

**يالے** :-( يا + لے ) ( لاحقه ) د نسبت كلمه چې د بعضې اسمونو په اخر
كښې راځي ـ لكه د جنگ نه جنگيالے ، ننگ نه ننگيالے ـ

**يامېدل** :- ( يا + مې + دل ) ( مصدر ، لازم ) چورلېدل ، رقص كېدل ،
گډېدل ، يمېدل ، نڅېدل ـ

**يامېدلے** :- ( يا + مے + دۀ + لے )( اسم مفعول ) وګورئ يامېدل ـ

**يامېدنه** :- ( يا+مې+دۀ + نه ) ( حاصل مصدر ) وګورئ ـ يامېدل ـ

**يامېدونكے** :- (يا+مې +دون + كے )(اسم فاعل ، واحد ، مذكر ) وګورئ يامېدل ـ

**يامېدۀ** :- ( يا + مې + دۀ ) ( حاصل مصدر ) وګورئ ـ يامېدل ـ

**ياندې** :- ( يا ن + دې ) يعني

**ياور** :- ( يا + ور ) ( صفت ) مرستيال ، دوست ، ملگرے ، مددگار ـ

**ياوري** :- ( يا + و + ري ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) مدد ، مرسته

**ياول** :-( يا + ول )( اسم ، واحد ، ، مؤنث ) زيرانگه ، زيرکه ـ

**ياوه** :- ( يا + وه )صفت ، عبث ، خراب ، بكواس ، فضول ، بې هوده ، وچ پوچ

**ياوه گو** :- ( يا + وه + گو) ( اسم ، صف ) بكواسي ، اوتې بوتې ويونكے ،
فضول خبرې كونكے ـ

**ياوه گوئي** :- ( يا + وه + گو + ئي ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) بې هوده گوئي
، فحش زبان ،

**ياهو** :- ( يا + هو )( اسم ) يوه مرغۍ ، ( افغانستان )

**يايا** :- ( يا + يا ) ( حرف ندا ) ابۍ ته د اواز كولو لفظ ، ابۍ

**يايل** :- ( يا + يل ) مصدر لازم ، د وئيل يو قرات

**يبرا** :- ( يب + را ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) وګورئ ابرا ـ

**يبره** :- ( يب + ره ) ( اسم ، صفت ) يو كلن اورے ـ

**يبل** :- ( يه + بل ) لاحقه او سابقه بربنډ ، اكثر پښنو سره راځي لكه پښې
يبل ـ بربنډې پښې ـ

**يبلا** :- ( يب + لا ) متعلق فعل ـ يو په يو ـ ناڅاپه و له واره ، له ورهمه ـ

**يبله** :- ( يب + له ) ( لاحقه ) وګورئ ـــ يبل

**يبلي** :- ( يب+لي ) ( اسم،صفت ، جمع ، مؤنث ) ابلې ، لوڅې ، بربنډې ،
كثر د پښنو سره راځي ـ لكه پښې يبلې ـ

**يبوست** :- ( يه + بوست ) ( اسم ، واحد ، مذكر ) وچوالے ، خشكي

**يبيه** :- ( يب + يه ) ( صفت ) يبيه يا ابيه هغه اس ته وئيلے شي چې ورو (
په ارام ) روان وي ـ

**يتامي** :- ( يه+تا+ مي ) ( صفت ) د يتيم جمع ـ بې موره بې پلاره

**يتيم** :- ( يه + تيم ) ( صفت ) چې پلار ئې مړ وي ـ

**يتيم خانه** :- ( يه + تيم + خا + نه) ( اسم ، واحد ، مؤنث )
د يتيمانو د وسېدو ځاے ، چې د يتيمانو پرورش په كښې كولے
شي ـ

**يج** :- ( يج )( صفت ) كلك ، سخت څيز ـ

**يجوز لا يجوز** :- (يه + جوز + لا+ يه + جوز) (مركب فقره ) جائز او ناجائز ،
حلال او حرام ، اصل معنٰى ئې ده ,, روا ده ناروا ده ،، د فقيهي
علماؤ اصطلاح ـ

**يجه** :-( يه + جه ) ( اسم ) ډيوټ ، جمع يجي ـ

**يخه** :-( يه+څه ) ( اسم،واحد ، مؤنث ) كچه څيز ، خزله ، گند

**يخ** :- ( يخ )( صفت ) سوړ ،د گرم ضد ،( اسم،واحد ،مذكر) كنگل ـ

**يخاؤ** :- ( يه+خاؤ )( اسم واحد ،مذكر) يخني پېدا كېدنه يخوالے ـ

**يخ پخ** :-( يخ + پخ )(اسم ، مركب ، واحد ، جمع، مذكر، مؤنث) ( يخه
پخه ) يخ مخ ، سوړ سمخ ،بې حسه، بې حركته ،دم وتلے ، ساه وتلے

**يخدان** :- ( يخ + دان)( اسم،واحد ، مذكر ) له څرمنې جوړ شوے يو
مخصوص صندوق ـ

**يخزني** :-( يخ + زۀ + ني )( اسم ) له يخنۍ كنگل شوے ، منجمد ـ

**يخ ماتې** :- ( يخ + ما + تې )( اسم،مركب، جمع ، مؤنث ) ترمې ،
نيمترې، چينه رنګې ، داسې اوبۀ چې معمولي شان ترمې وي ـ

**يخ مار** :- ( يخ +مار )( اسم،واحد ،مذكر ) د مار يو قسم ـ

**يخنار** :- ( يخ + نار )( اسم ، واحد ،مذكر ) اوچتې اوچتې څانګې لرونكے
يو بوټے ـ

**يخني** :- ( يخ +ني )( اسم ، واحد ، مؤنث ) ښوروا ،د ژمي موسم ، زكام ـ

**یخول** :- ( یه + خه + ول ) ( مصدر متعدي ) سړول ، وژل ، سزا ورکول.

**یخونکے** :- ( یـه +خـه+وون+کے ) ( اسـم ،فـاعل،واحد ،مذکر) (وګـورئ ـــ یخول) .

**یخونګ** :- ( یه + خه + ونګ ) ( حاصل مصدر) ( وګورئ ــ یخول ) .

**یخونه** :- ( یه + خه + وۀ + نه ) ( حاصل مصدر) (وګورئ یخول) .

**یخوالے** :- ( یخ + وا + لے ) (اسم ) د یخېدو حالت ، یخېدنه ، سردي ، یخني

**یخه** :- ( یه + خه ) (صفت) د یخ تانیث. (وګورئ یخ) .

**یخه خولی** :- ( یه + خه + خو + لی ) ( اسم،واحد ،مؤنث ) د تیلي کوله.

**یخه سیلی** :- ( یه+خه+سي+ لی ) ( اسم، مرکب ، واحد ، مؤنث ) د سړو چپه، سیلاؤ ، یخ باد .

**یخه موچڼه** :- ( یه + خه + مو + چه + ڼه ) ( اسم،واحد ، مؤنث ) یو قسم د تیلي پېزار . ( افغانستان ) .

**یخېدل**:- ( یـه + خې + دل ) ( مصـدر متعـدي ) سړېدل ،خـواهش پـوره کېدل.

**یخېدن** :- ( یه + خې + دن ) ( حاصل مصدر) (وګورئ : یخېدل) .

**یخېدنګ** :- ( یه + خې +دنګ ) ( حاصل مصدر ) (وګورئ : یخېدل) .

**یخېدونکے** :- ( یـه + خې + دون + کے ) ( اسم ،فاعل) جمع : یخېدونکي . مؤنث : یخېدونکې . (وګورئ یخېدل) .

**یخېدنه** :- ( یـه + خې + دۀ + نـه ) ( حاصل مصدراودماضي استمراري د واحد غائب صیغه) . (وګورئ یخېدل) .

**یخي** :- ( یه + خي ) ( اسم،واحد ، مؤنث ) کنګل ، یخ.

**ید** :- ( ید ) ( اسم ، واحد ، مذکر) لاس ، یدین ئې تنبیه ده .

**یدل** :- ( یه + دل ) (د مصدر لاړم علامت ) لکه ژړېدل ، خندېدل.

**یر** :- ( یر ) ( اسم ) راهدار ، اس.

**یراق** :- ( یـه + را + ق ) ( اسم ، واحد ، مـذکر ) د جنګ سامان ، سامانِ جنګ جمع یراقونه.

**یراند** :- ( یه + را + ن + د ) ( صفت ) یرن ، ویرېدونکے .

**یربـل** :- ( یر+بـل ) ( اسـم ،واحد ،مذکر) اتشـدان،انګیټۍ،خپل، خپلـوان، عزیزان.

**یربل** :- ( یر+بل ) (اسم،واحد ، مذکر) حصې ، د حصو حساب .

**یربه** :- ( یر + به ) ( اسم ) راکړه ، زمکه.

**یرړے** :- ( یر + ړے ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) ایرړے ، هیرړے ، د ګڼه یو قسم. (وګورئ : اېرړے) .

**یرزه** :- ( یر + زه ) ( اسم،واحد ،مذکر ) بیعه ، قیمت ، بها .

**یرغ** :- ( یرغ ) ( اسم،واحد ، مذکر ) خوښه ، مصلحت ، پړېن.

**یرغز** :- ( یر + غز ) ( صفت ) ځان له ، تنها ، یوائې.

**یرغکے** :- ( یر + غه + کے ) ( اسم،واحد ،مذکر ) یو قسم مرغۍ .

**یرغـل** :- ( یـر+ غـل ) ( اسـم ، واحـد ، مـذکر ) حملـه ، یرغـال ، تاخـت ، زغابنت ، ناڅاپي حمله.

**یرغلګـر**:- ( یر+غـل+ ګـر ) (صـفت ) حملـه کـونکے ، تاخـت کـونکے ، یرغـال کوونکے

**یرغل ګري** :- ( یر + غل + ګه + ري ) ( اسم،واحد ، مؤنث ) چپاؤ ،حمله .

**یرغمال** :- ( یر + غه + مال ) ( اسم،واحد ،مذکر ) ( وګورئ : یرغمل) .

**یرغمل** :- ( یر + غه + مل ) ( اسم ،واحد ،مذکر) هغه څوک چې د پېسو پـه غرض تبنتولے شي. یرغمال ، کفیل ، ضمانتي.

**یرغول**ے :- ( یر + غو+ لے ) ( اسم،واحد ،مذکر ) نغرے .

**یرغه** :- ( یر + غه ) (صفت، متعلق فعل) د اس د تلو یو قسم تـه وئیلے شي. تېز رفتار اس.

**یرغي** :- ( یر + غي ) ( اسم ، واحد ، جمع،مؤنث ) هغه تورې ایرې چې چت پورې نښتې وي.

**یرقان** :- ( یر + قا + ن ) ( اسم ، واحد ،مذکر ) یو مرض چې مخ ، سترګې او بدن په کښې زیړ شي -زیړے .

**یرمغان** :- ( یر+م + غان ) ( اسم ،واحد ،مذکر ) ارمغـان ، ډالۍ ، هدیـه ، سوغات.

**یـرمن** :- ( یـر+ مـن ) (صـفت ) ویرېـدونکے ، ویرنـدوکے ، شرمسـار ، شرمناک

**یرند** :- ( یه + رند ) ( صفت ) ویرېدونکے ، ډرن ، ډرپوک.

**یرندوک** :- ( یه + رن + دوک ) (صفت) بزدل ، خائف ، یرندوکے .

**یرندوکے** :- ( یه + رن +دوکے ) (اسم،صفت) ( وګورئ یرندوک ) .

**یرول** :- ( یه + ره + ول ) (مصدر متعدي) ویرول ، ډارول ، ترول.

**یرون** :- ( یه + رو + ن ) ( حاصل مصدر) ( وګورئ یرول) .

**یرونکے** :- ( یـه + ره + وون + کے ) ( اسم، فاعـل ، واحد ،مـذکر ) (وګـورئ یرول)

**یرونګ** :- ( یه + رو + نګ ) ( حاصل ، مصدر) (وګورئ : یرول) .

**یرونه** :- ( یه + ره + وۀ + نه ) ( حاصل مصدر) ( وګورئ : یرول) .

**یره** :- ( یه + ره ) ( اسم،واحد ،مؤنث ) (ویره، ترهه ، خوف ) .

**یره** :- ( یه + ره ) ( کلمه ) شاید ، زور ، شدت ، چې چرته په یـوه خبـره زور اچولے شي ، بې شکه ، خامخا غـوارم ، دا تـورے تکیـه کـلام دے . کلمه تعجب هم ده. شاید چې د یاره مخفف دے.

**یرېدل** :- ( یه + رې + دل ) ( مصدر لازم) ویرېدل ، ډارېدل ، ترېدل.

**یرېدن** :- ( یه + رې + دن ) ( حاصل مصدر) (وګورئ : یرېدل) .

**یرېدونکے** :- ( یه+ رې + دون+کے ) (اسم،فاعل،واحد ،مذکر) (وګورئ : یرېدل) .

**یرېدنه** :- ( یه + رې + دۀ +نه ) ( حاصل مصدر ) (وګورئ : یرېدل) .

**یرېدۀ** :- ( یه + رې + دۀ ) ( حاصل مصدر او او د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه) . (وګورئ : یرېدل) .

**یړ** :- ( یړ ) ( اسم، واحد ، مذکر ) حمله ، یرغل.

**یړه** :- ( یه + ړه ) ( متعل فعل) په غونډه .

**یړے** :- ( یه + ړے ) ( اسم ، واحد ، مـذکر ) ارړے ، هیـړے ، هیـرړے ، د ګڼه یو قسم.

**یز** :- ( یز ) کلمه نسبت ) غوره نه غوریز ، غر نه غریز .

**یزدان** :- ( یز + دان ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) د خېر مالـک ، د پارسیانو د خېر خدا ے.

**یزداني** :- ( یـز + دا + نـي ) صـفت ) مقـدس ، پرهېزګـار ، یـزدان سـره منسوب.

**یږ** :- ( یږ ) ( اسم،واحد ،مذکر ) تور مېلو ، یږ ، جمع : یږان.

**یږکټي** :- ( یږ + کټي ) (اسم،واحد ،مؤنث ) څوانه یږه ، څوان یږ ، د مېلو بچے.

**یږه** :- ( یه + ژه ) ( اسم ، واحد ، مؤنث ) هغه مرض چې په کښـې د څـرمن وېښتۀ دوړېږي. برساتي.

**یږ** :- ( یږ ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) مېلو ، یږ ، مؤنث : یږه. جمع : یږان.

**یس** :- ( یس ) ( متعلق فعل) اوس ، د اوس یو قرات.

**یسار** :- ( یه + سار ) ( اسم ، واحد ، مذکر ) بد شا ګومے ، بدقسمتو، کیڼ لاس یا ګس طرف ډېر زیات والے.

**یسال** :- ( یه + سال ) ( اسم واحد ، مذکر ) د فوج پېره.

**يساول** :- ( يه + سا +ول )( اسم ، احد ، مذكر ) د پوليس سپائي .
**يستل** :-( يس + تل )(مصدر متعدي )اېستل ، خارج كول .
**يسر** :- ( يو + سر )( اسم ، واحد ، مذكر ) ارام ، اساني .
**يسير** :- ( يه + سير )( صفت) هغه ماشوم چې مور ئې مړه وي .
**يسېدل** :- ( يه + سې + دل )( مصدر ) لازم ، پاتې كېدل ، وسېدل .
**يشم** :- ( يه + شم )( اسم ، واحد ، مذكر ) يو قيمتي شين كاڼى .
**شيند** :- ( يه + شند )( صفت ) يشېدونكى ،جوش خوړونكى .
**يشول** :- ( يه + شه + ول )( مصدر متعدي) جوش وركول ، گرمول .
**يشون** :( يه + شه + ون )( حاصل مصدر)(وگورئ : يشول) .
**يشـونكى** :- ( يـه + شـه + وون + كـے )( اسـم،فاعل،واحد ، مـذكر) جمـع: يشونكي . مؤنث : يشونكې . (وگورئ : يشول) .
**يشونگ** :-( يه + شو + ن + گ )( حاصل مصدر)(وگورئ : يشول) .
**يشېدل** :-( يه + شې + دل )( مصدر لازم) جوش خوړل ، خوټكېدل .
**يشېدنگ** :- ( يه + شې +دنگ )( حاصل مصدر)(وگورئ : يشېدل) .
**يشېدنه** :- ( يه + شې + دۀ + نه )( حاصل مصدر)(وگورئ : يشېدل) .
**يشېدونكى** :- ( يه + شې + دون + كے)(اسم ، فاعـل) جمـع: يشـېدونكي . مؤنث : يشېدونكې . ( وگورئ : يشېدل) .
**يښل** :- ( يه + ښل )(مصدر متعدي) د اېښول يو قرات .
**يښـودل** :- ( يـه + ښـو + دل )( مصـدر متعـدي) د كښـېودل يـو قـرات ، كښېښودل، اېښودل .
**يښول** :-( يه+ ښول )( مصدر متعدي) د اېښودل يو قرات .
**يښېمه** :-( يه + ښې + مه )( صفت ) نرطلبه اوښه ، هغه اوښه چې وار ئې راؤړے وي .
**يعني** :- ( يع + ني )(كلمه، عطف ) مطلب دا ، غرض دا .
**يغما** :- (يغ + ما )(صفت ) مال غنيمت ، د لوټ مال .
**يغماني** :- ( يغ + ما + ني )( صفت) غل ، لوټ مار ، ډاكو .
**يغي** :- ( يه + غي )( صفت) ياغي ، باغي .
**يفاع** :- ( يه+فاع )( اسم،واحد ،مذكر )اوچته زمكه ، ډبه ، ختړه .
**يفن** :- ( يه + فن )( صفت) بوډا .
**يقين** :- ( يه + قين )( اسم،واحد ،مذكر ) اعتبار ، اعتماد ، باور .
**يقـــين** :- ( يــه+قين )( اسـم ،واحد ،مذكر ) د خـالي ورځ ، وگــورئ : اكين،يكين
**يقيناً** :- ( يـه + قـي + نـن )( متعلق فعـل) خامخا ،ارومرو ، بې شـكه ، پـه يقين .
**يقينـي** :- ( يـه + قـي + نـي )( صـف ) خامخا ،ضروري، بـې شـكه ، لازمـي، ارومرو .
**يكه** :- ( يكه )( اسم،واحد ،مذكر ) يواځې ، ځان له ، يو ، يوازې .
**يكه امان** :- ( يكـه +ا+مـان )( اسم مركب،واحد ،مـذكر ) يكه امانه ، يـو شـان ، برابر ، يو هومره ، پوره په پوره و يو اندازه ، انجاغړى ، نوكه د څوكه .
**يكـاوه** :- ( يـه + كـا + وه )( اسـم ، واحـد ، مؤنـث ) لېـوه وريـځ ، پـه اسـمان راخوره شوې وريځ ، گوره وريځ .
**يكامانه** :- ( يه + كا+ ما+ نـه )( صـفت) سر تـا سر ، لـه يـوې مخـې ، ايـك امانه، يک امانه .
**يكـايـک** :- ( يـه + كـا + يـک ) متعلـق ، فعـل .غُـوري تپـه ، ناگهانـه ، سمدستي ، غره تپه .
**يكبارگي** :- ( يک +بار+گي )( متعلق فعل) ناگهانه ، په يو ځل .
**يک بيک** :-( يک + به + يک )(متعلق فعل) ناڅاپه ، ناگهانه .

**يكتا** :-( يک + تا )(متعلق فعل) صفت ، تنها ، ځان له ، بې مثـال ، چې د ځان په رنگ بل نۀ لري . بې نظير . بې مثله .
**يكتازه** :- ( يک+تا+زه )(متعلق فعل ) په يوه ځغاسته ، په يو تا .
**يكتائي** :- يک+تا+ئي )( اسم ،واحد ، مؤنث ) وحدت ، يو والے .
**يكدل** :- ( يک + دل )( صفت) دوست، خېر خواه ، همراز .
**يكدلي** :- ( يک +د + لي )( اسم ) اتحاد ،اتفاق، يو زړۀ كېدنه .
**يكرنگ** :-( يک + رنگ )( صفت ) يو رنگ ، يو شان ، صادق،د صفا زړۀ خاوند ، مخلص .
**يكړ** :- ( يه + كړ )( صفت) تنها ، يواځې ، يو ، يگانه .
**يكړؤل** :- ( يک + ړه + ؤل )( مصدر) يو يو رغېدل .
**يكړېدن** :-( يک + ړې + دن )( حاصل مصدر) . (وگورئ : يكړېدل) .
**يكړېدنه** :-( يک + ړې + دۀ + نه )( حاصل مصدر)(وگورئ : يكړېدل) .
**يكړېـدونكى** :- ( يـک + ړې + دون + كـے )( اسـم ،فاعل،واحد ، مـذكر ) ( وگورئ : يكړېدل) .
**يكسو** :- ( يک + سو )( صفت ) يو خوا ته ، يو طرفته ، ساكن ، ودرېدلے .
**يک گونه** :- ( يک+گو+نه)( صفت ) په يو رنگ ، لږ كوټې ، لږ شان .
**يـک لخـت** :- ( يک+لخـت )( صـفت،متعلق فعـل) ، تمـام ، سراسـر ، سمدستي،فوراً .
**يک لخته** :- ( يک + لخ + تـه )( صفت، متعلق فعـل) پـه يـو وار ، پـوره ، ټول ، اچانک ، ژر .
**يک مشت** :- ( يک + مشت )( متعلق فعل) په جمع ، په غنډه ، په يو ځل .
**يكه** :- ( يه+كه )( اسم ، واحد ، مؤنث ) د تاش ورومبى پاڼه ، يو خال ، ايكه .
**يكه تاز** :- ( يه+ كه + تاز )( صفت) په دښمن بانـدې يـواځې حملـه كـونكے بهادر . يواځې سورلي كونكے .
**يكه دوكه** :-( يه+ كه + دو + كه)( اسم ،واحد ، مذكر ) خال خال ، يـو نـيم ، بعضې نيم . شاذ و نادر ، ايكه دوكه .
**يكه يكه** :- ( يه + كه + يه + كه )( صفت) بې مثال ، بې نظير .
**يكين** :- ( يه + كين )( اسم،واحد ،مذكر ) د خالي ورځ .
**يكي يو** :- ( يه + كي + يو )( اسم ، مركب ، واحد ، مذكر) اكي يو ، بېخي يواځې . بالكل يو .
**يكي يوائې** :- ( يه + كي + يه + وا + ځي )( اسم ، مركب ) بالكل يواځې ، بالكل تنها .
**يگانگي** :- ( يه + گان + گي )( اسم ) قرابت ، خپلوي ، يو والے اتفاق .
**يگانـه** :- ( يـه + گا نـه )( صـفت) نژدې ، خپـل ، يـواځې ، لاثـاني ، بې مثله ، بې ساري ، بې جوړې .
**يگه** :- ( يه+ گه )( اسم ، واحد ، مؤنث ) د اسونو د ريخ مرض .
**يگي** :- ( يه + گي )( اسم) يوه لوبه چې د لرگيو په ذريعه كولے شي .
**يل** :- ( يل )( صفت) بهادر ، باتور ، پهلوان ، تورزن .
**يلدا**:( يل + دا )( اسم ، صفت ) تور تيپـه شـپه ، اوږده شـپه ، ډېـره اوږده شپه ، د ټولو نه اوږده شپه .
**يلغار** :- ( يل + غار )( اسم ، واحد ، مذكر ) يرغل ، هجوم .
**يلغت** :- ( يل + غت )(متعلق فعل) په يو ځل .
**يلغر** :- ( يل + غر )( اسم ، واحد ، مذكر )(وگورئ : يرغل) .
**يلغز** :- ( يل + غز )(صفت) ځان له ، يواځې .
**يلمق** :- ( يل + مق )( اسم ، واحد ، مذكر ) يو قسم كالے ، قبا .
**يله**:- ( يه+له )( صفت) اواره،ازاده ، پرانستے،خوشے ، هيله .
**يله**:- ( يه + له )( اسم ، واحد ، مؤنث ) دلدل ، بوخته ، ختېنه زمكه .

**یم** :- ( یم ) د صفت نسبتي علامت ، لکه : اتیایم ـ

**یم** :- (یم)(اسم،واحد،مذکر)سمندر ، بحر،دریاب ، سیند ، حصه، اړخ

**یمال** :- ( یه + مال )(اسم) ایمال ، د و اوړي راښوئیدونکے غر ـ

**یمل** :- ( یه + مل )( مصدر ) یمېدل ، مستېدل ، نشه کېدل ـ

**یمن** :- ( یه + من )( اسم ، واحد ، مذکر ) سعادت ، خوش نصیبي ، کامیابي ـ

**یمنول** :- ( یم +نه + ول )( مصدر متعدي ) دلاسه ورکول ، تسلي ورکول ـ (وګورئ : ایمنول) ـ

**یمنېدل** :- ( یم + نې + دل )( مصدر لازم ) ارام موندل ، دلاسه کېدل ـ (وګورئ : ایمنېدل ) ـ

**یمول** :- ( یه+م+ وُل )( مصدر ،متعدي) چورلول،ګرځول ، تاوول ـ

**یمه** :- ( یه + مه ) لاحقه ، د حېوان سره د راتلۀ په محل د نر طلبي معنٰی ورکوي

**یمین** :- ( یه + مین )( اسم ، واحد ، مذکر ) قسم ، سوګند ، طاقت ـ ښے لاس

**یمېدل** :- ( یه + مي + دل )( مصدر لازم ) سر چورلېدل ـ

**ین** :- ( ین ) د نسبت کلمه چې د اسم په اخرکښې راځي لکه د مالګه نه مالګین ـ خاوره نه خاورین، اسم : اینه ، ځیګر ـ

**ینجه** :- ( ین + جه )( اسم ، واحد ، مؤنث )( وګورئ : هنجه،اینجه ) ـ

**یندره** :- ( ین + دره )( اسم ) یو پلن کانړے چې دچړې چاقو د تېرولو دپاره پکارولے شي ـ برجو ـ ځرخ ـ جمع : یندرې ـ

**ینده** :- ( ین+ده )( اسم،واحد ، مؤنث )( وګورئ : اینده ، هنده ) ـ

**ینډه** :- ( ین + ډه )( اسم،واحد ،مؤنث ) سرکشي ، بغاوت ،ضد ،مستي ـ

**ینګ** :- (ینګ )(اسم،واحد، مذکر) حال،حالت،صورت ، شان ،وعده ، نېټه ـ

**ینګړي** :- ( ینګ + ګ + ړي )( صفت ) نیمګړي ـ

**ینګه** :- ( ینګ + ګه )( اسم ، واحد ، مؤنث ) د کولالانو یوه اله چې کوزه پرې مئینولے شي ـ

**ینه** :- ( ئي + نه )( اسم ، واحد ، مؤنث ) ځیګر ، اینه ، کلیجي ـ

**ینه** :- ( یه + نه )( اسم ، واحد ، مؤنث ) وینه ، د بنیادم ، څاروو ، مرغو وغېره په رګونو کښې بهېدونکې د سور رنګ ماده ـ

**یو** :- ( یو ) صیغه جمع متکلم ، لکه مونږ یو ـ

**یو** :- ( یو )( اسم،عدد ،واحد ) یک ،د شمېرې وړومبے ټکے ـ

**یو اواز** :- ( یو + ا + واز )( اسم ،متعلق فعل،مذکر) یوه خولۀ ، یوه ژبه ، په جمع ، په غونډه ، په ټوله ، متحد ، متفق ـ

**یواځنے** :- ( یه + وا + ځه + نے ) صفت ، تنها ، ځان له ـ

**یو اړخ بل اړخ** :- ( یو + ا + ړخ + بل + ا + ړخ ) (متعلق فعل)(وګورئ: اخوا دېخوا ـ

**یو اتیایم** :- ( یو+ات+ یا + یم )(صفت) د یو اتیا صفتي شکل ، مؤنث : یو اتیایمه

**یواځي توب** :- ( یه + وا + ځي + توب )( اسم ) د یواځي کېدو حالت ، تنهائي یواځي کېدنه ، یواځي والے ـ

**یواځي والے** :- ( یه + وا + ځي + والے )(اسم)( وګورئ : یواځي توب) ـ

**یو اویایم** :- ( یو + او + یا + یم )( صفت) د یو او اویا صفتي شکل ـ مؤنث: یو اویایمه ـ

**یواق** :- ( یه + وا + ق )( صفت) سپین ږیرے ـ

**یو برابر** :- ( یو + ب + را + بر )( اسم ، مرکب ) یو شان ، یو هومره ، په برابرو حصو وېشل شوي ـ

**یو بندے** :- ( یو + بن + دے )(اسم) یو نلیز ټوپک ـ

**یو بندیزه** :- ( یو + بن + دي + زه )( اسم،واحد ،مؤنث ) هغه اګې چې صرف یو زیږ په کښې وي ـ

**یو به** :- ( یو + به )( اسم،واحد ،مذکر ) بزګر ، دهقان ـ

**یوپ** :- یوپ )( صفت) غرق ، ډوب شوې ، ډوب ، غوپه ـ

**یوپټه** :-( یو + په + ټه )(اسم) په یو تا ( کمبل ) ـ

**یو پنځوس** :- ( یو + پن + ځوس )(اسم عدد) یو دپاسه پنځوس ـ

**یو پنځوسم** :- ( یو + پن + ځو + سم )( صفت) د یو پنحوس صفتي شکل ، مؤنث : یو پنځوسمه ـ

**یو په دوه** :-( یو + په + دوه )( صفت) دوګونه ، دوه چند ـ

**یو په لس** :- ( یو + په + لس )( صفت) ، یوؤلس چنده ـ

**یو په یو** :- ( یو + په + یو )( صفت) ځان ځان له ، یو یو ـ

**یو تربله** :- ( یو + تر + بۀ + له )( صفت) خپلو کښې ـ

**یوتوب** :- ( یو+توب )( اسم ) یو والے ،یګانګي ، د یوکېدو حالت ـ

**یوتول** :- ( یو+ته+ول )( مصدرمتعدي ) راپېدا کول،موندل،یافتول ـ

**یوتېدل** :- ( یو+تې+دل )( مصدرلازم) موندلے کېدل،یاتېدل،یافتېدل ـ

**یو جنس**:- ( یو + جي + نس )( متعلق فعل) یو شان ، یو رنګ ـ

**یو ځاے** :- ( یو + ځا ے )( اسم ، مرکب ، واحد ، مذکر ) په شریکه ، په غُنډه ، په ټوله ، ټول ، اجتماعي ـ

**یو ځل** :- ( یو + ځل )( صفت) یو وار ـ

**یو ځلې** :- ( یو + ځه + لې )( صفت) یو وارې ـ

**یو څلوښت** :- ( یو + څل + وښت )( اسم ، عدد ) یو د پاسه څلوښت ، یو دپاسه دوه شلې ـ

**یو څلوښتم** :- ( یو+څل + وښ + تم )( صفت ) د یو څلوښت صفتي شکل ـ مؤنث : یو څلوښتمه ـ

**یو څو** :-( یو + څو )( صفت) څۀ نا څۀ ، لږ ـ

**یو څېر** :- ( یو + څېر )( صفت )( وګورئ : یو جنس) ـ

**یوحا** :- ( یو + حا )( اسم ، واحد ، مذکر ) هغه تور مار چې د عامې عقیدې مطابق د زرو کالو نه پس د خپل شکل بدلولو قوت لري ـ (صفت) ډېر خور ، زیات خوړونکے ـ

**یو خوا بل خوا** :-( یو + خوا + بل + خوا )( متعلق فعل ) دلته ، هلته ، اخوا دېخوا ، یو طرفته بل طرفته ـ

**یو بل سره** :- ( یو + بل + سه + ره )( متعلق فعل ) خپلو کښې ـ

**یو دړدنګ** :- ( یو + دړ + دنګ )( صفت ) یو شان حرکت ـ

**یو دستوے** :-( یو + دست + وے )( صفت )( وګورئ : یوستوے) ـ

**یودېرش** :- ( یو + دېرش )( اسم،عدد ) یو دپاسه دېرش ـ

**یو دېرشم** :- ( یو + دېر +شم )( صفت ) د یو دېرش صفتي حالت ـ مؤنث : یو دېرشمه ـ

**یو ډزے** :-( یو + ډ + زے )( اسم ، صفت ) یو کالتوس خوړونکے ټوپک ، یو میله ، یو نلیز ـ

**یور** :-( یور )( اسم ، واحد ، مؤنث ) د لېور ښځه ، اور ـ

**یورش** :-( یو + ر + ش)(اسم ، واحد ، مذکر ) هله ، هپه ، بلوه ، غلبه ، حمله ـ

**یوړ** :- ( یوړ )( اسم ،واحد ، مذکر ) بالغ شوے هلک ـ

**یوړاینه** :- ( یو + ړا + یه + نه )( اسم ) ډاډګېرنه ـ

**یوز** :-( یوز )( اسم ،واحد ،مذکر ) پړانګ ، بور ، بورګے ، پیش ـ

**یو ژبے** :-( یو + ژۀ + بے )( صفت ) ربنتونے ، د وعدې پابند ـ

**یو ژۍ** :-( یو + ژۍ )( اسم ، واحد ، مؤنث ) یو تول چې د دولسو لپو برابر وي

**یوږۍ** :- ( یو + ږۍ )( اسم ، واحد ، جمع ، مؤنث ) دولس لپې ـ

**یو سترګے** :-( سو + ستر + ګے )( صفت ) یوه سترګه لرونکے ، چې یوه

ستركه ئې وي.
**يوستوے** :- ( يه + وس + تۀ + وے )( صفت ) يو لړ و يو كس ، نرے ، يواځې ، يو، د غبرګ ضد ، يو برغيز.
**يوسته** :-( يه+وس+ته )( اسم ،واحد ،مؤنث ) تسمه ، د ډول رسۍ.
**يو شان** :-( يو + شان )( متعلق فعل ) يو قسم.
**يو شپيبے** :-( يو + شپې + بے )( صفت ) د يوې شپې.
**يو شپېتۀ** :- ( يو + شپې + تۀ )( اسم ، عدد ) يو دپاسه شپېتۀ ، د يو دپاسه درې شلې.
**يو شپېتم** :- ( يو + شپې + تم )( صفت ) د يو شپېتۀ صفتي شكل ، مؤنث : يو شپېتمه.
**يوغ** :- ( يوغ )( اسم ، واحد ، مذكر ) جغ.
**يو غر بل غر** :-( يو+غر+بل+غر )( اسم ، مركب ،واحد ،مذكر ) هغه دغه،انګا بنګا ،عبثي،بې ځايه خبرې ، اوتې بوتې.
**يو غي** :- ( يو + غي )( صفت ) باغي ، ياغي ، بغاوت كونكے.
**يو كا** :- ( يو+كا )( اسم ) يوكي ،دمېرګاټو په لوبه كښې يوعمل.
**يوكلن** :- ( يو + كه + لن )( صفت ) د يو كال ، يو كليز ، چې د يو كال وي.
**يوكي** :- ( يو + كي )( اسم ، واحد ، مؤنث )( وګورئ : يوكا).
**يولس** :- ( يه+وو+لس )( اسم ، عدد ) لس او يو ، د يو پاسه لس.
**يولسم** :- ( يو +له + سم )( صفت ) د يولس صفتي شكل.مؤنث : يولسمه
**يولس ډزے** :- ( يه + و + لس + ډ + زے )( اسم واحد ، مذكر ) هغه ټوپک چې يوولس كارتوس په كښې راځي.
**يو لوړي** :- ( يو + لو + ړي )( صفت ) وعده ، سوګند ، قسم ، قسميان ، قسم خوړونكي.
**يو له بله** :- ( يو+له+بۀ+له )( متعلق فعل ) يوبل سره،خپلو كښې.
**يُوم** :- ( يوم )( اسم ، واحد ، مذكر ) ببل ، يو قسم ببلچه.
**يوم** :- ( يوم )( اسم ، واحد ، مذكر ) نېټه ، ورځ.
**يوم الحساب** :-( يو + مل +ح + سا + ب )( اسم ،واحد ، مذكر ) د قيامت ورځ چې د هر چا نه به په كښې د خپلو عملونو حساب اخستے شي.
**يوم القيامت** :- (يو + مُل + قه + يا +مت )( اسم واحد ، مذكر ) د محشر ورځ ، د حساب ورځ ، د قيامت ورځ.
**يوم الوعيد** :-( يو + مول + وع + عيد )( اسم ، واحد ، مذكر ) د قيامت ورځ
**يو مخ** :- ( يو+مخ )( متعلق فعل ) متواتر،پرله پسې.(صفت) ښتنے.
**يو مختوب** :-( يو + مخ + توب )( اسم ) صداقت ، ربښتياوالے ، يومختيا.
**يو مختيا** :- ( يو + مخ + تيا )( اسم )( وګورئ : يو مختوب).
**يو مخيز** :- ( يو + مه + خيز )( صفت ) د يوې خبرې سړے ، د اصولو پابند ، كوتاه انديش.
**يو مخے** :- ( يو + مه + خے )( صفت ) مخلص ، ربښتونے.
**يو مكے** :- ( يوم+كے )( اسم ) وړوكے يوم ، د ملا تبخے،جمع يومكي.
**يوميه** :- ( يو + مي + يه )( اسم ، واحد ، مؤنث ) د ورځې مزدوري ، روزانه اجرت.
**يون** :- ( يون )( اسم ،مذكر ) تلل ، رحلت، تګ ، رفتار ، تلۀ، تلنه سفر ، هغه تګ چې نۀ تېز وي نۀ په مزه.
**يونټ** :- ( يو + نټ )( اسم ، واحد ، مذكر ) د شمېر دپاره يو خاص پېمانه ، وحدت.يو والے.

**يو نل** :- ( يو+نل )( مصدر ،لازم ) تګ كول ، تلل ، رفتار كول.
**يو نوي** :-( يو + نه + وي )( اسم ، عدد ) يو او نوي ( ۹۱ ).
**يونيفارم** :-( يو + ني + فا + رم)( اسم،واحد ، مذكر) وردي ، درېشي.
**يو نيم** :- ( يو + نيم )( اسم ، عدد ) يو روغ يو نيم ، يو او نيم.
**يونين** :- ( يو + ني + ين )( اسم ، واحد ، مذكر ) اتفاق ، اتحاديه.
**يونيورسټي** :- ( يو + ني + ور + س + ټي )( اسم،واحد ،مؤنث ) دانشكده ، پوهنتون
**يوړه** :- ( يو + ړه )( اسم ، جمع ، مؤنث ) د يور جمع.(وګورئ : يور).
**يوړې** :- ( يو + ړې )( اسم ، يوړه ، د دوۀ وروڼو ښځې.
**يو وار** :- ( يو + وار )(صفت) يو ځل.
**يو واله** :- ( يو + وا+ له )( اسم ،واحد ، مؤنث ) يو والے ، اتفاق.
**يو والے** :- ( يو + وا + لے )( اسم ، صفت ) اتفاق ، اتحاد.
**يو وختيز** :- ( يو + وخ + تيز )( صف ) د يو وخت.
**يو ورګ** :- ( يو + و +رګ )( اسم ، واحد ، مذكر ) د يو كال اوښ.
**يو وزرے** :-( يو + وز + رے )( اسم ، صفت ) يواځې ، تنها ، چې څوک ئې د مدد نۀ وي.
**يوه** :-( يه + وه)( اسم ، واحد ، مؤنث ) ايوې ، يوې ، د زمكې اړولو اله.
**يوه** :-( يه + وه )( اسم ، عدد ) د يو مؤنث.
**يوؤلس ډزے** :-( يه + وۀ + لس + ډ + زے )( اسم ، صفت ) غوړين ټوپک.
**يوؤلس كون** :-( يه + وۀ + لس + كون )( اسم ، صفت ) يوؤلس چنده زيات
**يوۀ خولۀ** :- ( يه + وۀ + خوله )( اسم صفت ) متفق ، په يو اواز.
**يوه خوا** :- ( يه + وه + خوا )( صفت ) يو طرفته ، يو اړخ.
**يوه دوے** :-( يه + وه + د+ وے )( اسم ، واحد ، مذكر ) كې يو ، يكې يو ، ببخې يواځې.جره څړه ، بې مل ، بې ملګرې ، نيازبين.
**يوه ديوے** :- ( يه + وه + دي +وے )( صفت ) يواځې ، يو وزرے.
**يوه زرے** :- ( يه+ وه + ز + رے )( صفت ) يواځې.
**يويشت** :- ( يه + ويشت )( اسم عدد ) يو دپاسه شل ( سنسكرت ).
**يو يو** :- ( يو + يو )(صفت) يو په يو.فوراً.
**يويه** :- ( يو + يه )( واحد ،مؤنث ) اګۍ ، هاګۍ.
**يوې** :- ( يو + ې )( اسم،واحد ،مؤنث ) ايوې ، هل ، يوا.
**يه** :- ( يه + ) حرف ندا ) يا ، چاته د اواز كولو كلمه.
**يهود** :-( يه + هو + د )( اسم،جمع، مذكر ) د حضرت موسیٰ عليه السلام امتيان.
**يهوديت** :- ( يه+هو+ديت )( اسم،واحد ،مذكر ) د يهوديانو مذهب.
**ييړ** :- ( ييړ )( اسم ،واحد ، مذكر ) د بحري فوځ دسته چې د يو كس په كمان كښې وي.
**ييلاتي** :- ( ئي + لا+ تي )( اسم ، واحد ، مذكر ) هغه يخ ځاے چې خلق په كښې د ګرمۍ موسم تيروي.
**ې** :- ( ئې )( حرف ) يائې مخصوص .د پښتو د پټۍ دوه څلوېښتم مخصوص حرف د پښتو خاص تلفظ لري لكه سړې اوبۀ ، درې ، چرې ،مركب صورت كښې به لاندې باندې ټكې لري .لكه تېل،ګرځېدل،كېدل وغېره.

◈◈◈

11/10/2018